# دَ قرآن کریم

ترجمه او تفسیر
په پښتو ژبه کښې

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ




ددې قرآنکريم او ورسره دپښتو ترجمې او تفسير دچاپ د امر سعادت د
حرمينو شريفينو خادم پاچا سلمان بن عبد العزيز آل سعود ته حاصل شو

تشرف بالأمر بطباعة هذا المصحف الشريف وترجمة معانيه
خادم الحرمين الشريفين الملك سلمان بن عبد العزيز آل سعود
ملك المملكة العربية السعودية

وقف لله تعالى من خادم الحرمين الشريفين
الملك سلمان بن عبد العزيز آل سعود
ولا يجوز بيعه
يوزع مجانا




# القرآن الكريم وترجمة معانيه إلى لغة البشتو

## المجلد الأول

من بداية سورة الفاتحة إلى نهاية سورة الكهف

مجمع الملك فهد لطباعة المصحف الشريف

دا قرآنکریم د پښتو ترجمې او تفسیر سره د خادم
الحرمین الشریفین پاچا سلمان بن عبد العزیز آل سعود
لخوا د الله تعالی د رضا لپاره وقف دی
خرڅول یې منع دي
وړیا ویشل کیږي



# دقرآنکریم
## د معانیو پښتو ترجمه
## او تفسیر

لومړی ټوک

د سورة الفاتحة له پیل څخه د سورة الکهف تر پای پورې

په مدینه منوره کښې دقرآنکریم د چاپ لپاره د پاچافهد چاپخانه

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

# مقدمة

**بقلم معالي الشيخ: صالح بن عبدالعزيز بن محمد آل الشيخ**
**وزير الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد**
**المشرف العام على المجمع**

الحمد لله رب العالمين، القائل في كتابه الكريم:

﴿... قَدۡ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ﴾.

والصلاة والسلام على أشرف الأنبياء والمرسلين، نبينا محمد، القائل:

«**خيركم من تعلّم القرآن وعلّمه**».

أما بعد:

فإنفاذاً لتوجيهات خادم الحرمين الشريفين، الملك سلمان بن عبدالعزيز آل سعود، -حفظه الله-، بالعناية بكتاب الله، والعمل على تيسير نشره، وتوزيعه بين المسلمين، في مشارق الأرض ومغاربها، وتفسيره، وترجمة معانيه إلى مختلف لغات العالم.

وإيماناً من وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد بالمملكة العربية السعودية بأهمية ترجمة معاني القرآن الكريم إلى جميع لغات العالم المهمة تسهيلاً لفهمه على المسلمين الناطقين بغير العربية، وتحقيقاً للبلاغ المأمور به في قوله ﷺ: «بلّغوا عني ولو آية».

وخدمة لإخواننا الناطقين بلغة البشتو يطيب لمجمع الملك فهد لطباعة المصحف الشريف بالمدينة المنورة أن يقدم للقارئ الكريم هذه الترجمة لمعاني القرآن الكريم إلى لغة البشتو المسماة بـ «تفسير كابلي» وهي التي أعدّها هيئة من علماء أفغانستان بتحويلها من اللغة الأردية، وقد راجعها من قبل المجمع لجنة مؤلفة من الدكتور محمد بلال محمد أمين، والدكتور عبد السميع عبدالأول، والدكتور إسماعيل محمد عبد الغفار.

ونحمد الله سبحانه وتعالى أن وفق لإنجاز هذا العمل العظيم الذي نرجو أن يكون خالصاً لوجهه الكريم، وأن ينفع به الناس.

إننا لندرك أن ترجمة معاني القرآن الكريم -مهما بلغت دقتها- ستكون قاصرة عن أداء المعاني العظيمة التي يدل عليها النص القرآني المعجز، وأن المعاني التي تؤديها الترجمة إنما هي حصيلة ما بلغه علم المترجم في فهم كتاب الله الكريم، وأنه يعتريها ما يعتري عمل البشر كلّه من خطأ ونقص.

ومن ثم نرجو من كل قارئ لهذه الترجمة أن يوافي مجمع الملك فهد لطباعة المصحف الشريف بالمدينة النبوية بما قد يجده فيها من خطأ أو نقص أو زيادة للإفادة من الاستدراكات في الطبعات القادمة إن شاء الله.

والله الموفق، وهو الهادي إلى سواء السبيل، اللهم تقبل منا إنك أنت السميع العليم.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

# سریزه

## د اسلامي چارو، اوقافو، دعوت او ارشاد وزیر او په مدینه منوره کښې دقرآنکریم د چاپ لپاره د پاچا فهد مرکز د اعلی سرپرست عالیقدر شیخ صالح بن عبد العزیز بن محمد آل الشیخ لیکنه

الحمد لله رب العالمین، القائل في کتابه الکریم: ﴿... قَدْ جَآءَكُم مِّنَ اللَّهِ نُورٌ وَكِتَٰبٌ مُّبِينٌ﴾ المائدة: ۱۵، یعني بې شکه تاسو ته د الله تعالی لخوا رڼا او داسې کتاب راغلې دې چه پخپله هم واضح او د حق او باطل واضح کونکې هم دې، یعنی قرآنکریم.

والصلاة والسلام علی أشرف الأنبیاء والمرسلین، نبینا محمد القائل: «خَيْرُكُمْ مَنْ تعلَّمَ القُرآنَ وَعَلَّمَه»، یعنی په تاسو کښې بهتر او غوره هغه څوک دې چه پخپله قرآنکریم زده کړي، او هم یې نورو ته وښایي... أما بعد:

د سعودی عربستان پاچا خادم الحرمین الشریفین سلمان بن عبد العزیز آل سعود حفظه الله دهغه امر په اساس چه په قرآنکریم دې هر اړخیز اهتمام وشي، او د نړۍ په شرق او غرب کښې دې مسلمانانو ته قرآنکریم او د هغه د معانیو ترجمه او تفسیر په بیلابیلو ژبو سره خپور او ورورسول شي.

همداراز د اسلامي چارو، اوقافو او دعوت وارشاد وزارت پدې باور دې چه د قرآنکریم د معانیو ترجمه او تفسیر د نړۍ مهمو ژبو ته ژباړل خورا ډیر اهمیت لري، تر څو چه غیر عرب مسلمانان په قرآنکریم او د هغه په معنی او تفسیر او په هغې کښې په رالیږل شوو احکامو باندې په آسانۍ سره پوهه شي، او د رسول الله ﷺ هغه حکم عملي شي چه فرمایي: «بلِّغوا عنّي ولو آیة»، یعنی ځما لخوا ددین احکام نورو خلکو ته ورسوئ اګر که یو آیت کریمه هم وي.

نو په همدې خاطر د پښتنو او پښتو لوستونکو ورونړو سره د خواخوږۍ او د هغوئ د خدمت لپاره په مدینه منوره کښې د قرآنکریم د چاپ لپاره د پاچا فهد دچاپوني مرکز ډیر په خوشحالۍ سره پښتنو او دپښتو ژبې لوستونکو ورونړو ته دقرآنکریم د معانیو دا ترجمه او تفسیر وړاندې او (ډالۍ) کوي.

دا ترجمه او تفسیر په اصل کښې په اردو ژبه لیکل شوي وو، او بیا د افغانستان دعلماؤ د یو ټولي لخوا پښتو ژبې ته ژباړل شوې، چه په «کابلي» تفسیر شهرت لري، او د «مجمّع» لخوا د یو علمي هیئت (دکتور محمد بلال «امیني»، دکتور عبد السمیع، او دکتور اسماعیل) لخوا د هغې مراجعه او نظر ثاني شوې دې.

د الله جل جلاله ډیر شکر ګزار یو چه ددې لوي کار د پوره کیدو توفیق یې راکړ، اود الله سبحانه وتعالی څخه امید لرو چه زمونږ دا عمل خالص د خپلې رضا لپاره وګرزوي، او ددې جوګه شي چه خلک ورڅخه استفاده وکړي.

مونږ پوهیږو چه د قرآنکریم دمعانیو ترجمه او ژباړه- که هر څومره دقیقه هم وي- کله د هغو لویو معانیو ترجماني کولې شي کوم چه د قرآنکریم په الفاظو کښې نغښتې وي؛ ځکه دا ترجمه خو یوائې د هغو معانیو تعبیر او ژباړه ده چه دمترجم او ژباړن علم د قرآنکریم په پوهه او فهم کښې ورته رسیدلې دې.

نو دا ترجمه او تفسیر هم لکه د هر انساني او بشري عمل په څیر د خطا او نقصان څخه محفوظ نه ده، نو له دې کبله له هر محترم لوستونکي څخه هیله کوو چه که پدې ترجمه کښې ورته کومه خطا کمې او یا هم زیاتې په مخه ورشي، نو په نبوي مدینه کښې د قرآنکریم د چاپ مرکز «مجمع الملك فهد» ته دې راواستوي، تر څو چه په راتلونکو چاپونو کښې ورڅخه استفاده وشي إن شاء الله تعالی، والله الموفق وهو الهادي الی سواء السبیل، اللهم تقبل منا إنك أنت السمیع العلیم.

## د قرآنکریم د ترجمې او تفسیر په هکله لنډ معلومات

### تمهید

قرآنکریم د الله تعالی هغه کلام دې چه حروف او معاني يې په خپل پيغمبر محمد ﷺ باندي راليږلي دي، داسې پيغمبر چه د ټولو عالمونو لپاره رحمت دې، او هم مؤمنانو ته په نعمت او راحت زيرې ورکونکې او سر غړوونکو ته له عذاب او جهنم څخه ويروونکې دې، چه د الله تعالی په امر باندی دالله تعالی دين ته بلونکې او د عالم لپاره رڼا کوونکې څيراغ دې.

په راتلونکو څو صفحو کښې دقرآنکريم او دهغه د پيغام لنډه پيژندنه د لوستونکو مخی ته وړاندی کوو:

د قرآنکريم پيژندنه:

لومړې: د قرآنکريم پيژندنه، او دهغه د نومونو او صفتونو بيان:

قرآنکريم د الله جل جلاله هغه کلام دې چه پخپل پيغمبر محمد ﷺ يې نازل کړې دې، او دقرانکريم لفظ او معنا دواړه رسول الله ﷺ ته د وحيی په واسطه راغلي دي، په مصاحفو او قرآنکريمونو کښې ليکل شوې دې، او په تواتر سره له محمد ﷺ څخه تر اوسه پوری رانقل شوې دې، تلاوت او لوستل يې عبادت ګرزول شوې، او په لمونځونو کښې لوستل يې هم متعين دې.

او دا ډول وحيی چه الله سبحانه وتعالی په محمد ﷺ باندی نازله کړی ده، الله جل جلاله په قرآنکريم باندی نومولی ده، لکه چه فرمايي: ﴿إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ تَنْزِيلًا﴾ الدهر: ٢٣، يعني بيشکه مونږ په تا باندی -اې محمده- قرآنکريم لږ لږ او د ضرورت او حاجت په مناسبت راليږلې دې؛ ځکه د قرآنکريم شان دا دې چه ولوستل شي، تلاوت يې وشي او مهمل پرينښودل شي.

همداراز الله جل جلاله ورته «الکتاب» هم ويلې دې، لکه چه فرمايي: ﴿إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ﴾ النساء: ١٠٥، يعنی الله عز وجل فرمايي: بيشکه ليږلې مو دې تا ته -أې محمد ﷺ- دا کتاب - قرآنکريم - په حقه؛ نو کتاب ورته ځکه ويل شوې چه د قرآنکريم شان دا دې چه وليکل شي، او مهمل پرينښودل شي، تر څو له ضايع کيدو څخه وژغورل شي.

همدارنګه الله تعالی د قرآنکريم مختلف صفتونه بيان کړي دي، لکه:

«فرقان» يعنی: د حق او باطل ترمنځ فرق کونکې او بيانوونکې.

«ذکر» يعنی: پند او نصيحت.

«هُدًى» يعنی : پخپله هدايت، او هم هدايت کوونکې.

«نور» يعنی: پخپله رڼا، او مؤمنانو ته رڼا کوونکې.

«شفاء» يعنی: د روحي او بدني مرضونو لپاره روغتيا او شفا ده.

«حکيم» يعنی: د حکمتونو کتاب.

«موعظة» يعني: د وعظ او نصيحت كتاب.

او همداسې نور ډېر صفتونه چه د قرآنکريم په لوي شان او دهغه درسالت په كمال باندي دلالت كوي، الله تعالى پخپل قرآنكريم كښې ياد كړي دي.

قرآنكريم ته «مُصْحَف» ځكه ويل كيږي چه د«مصحف» كلمه له هغه صحيفو څخه اخستل شوی ده چه قرآنكريم به ورباندی ليكل كيدلو.

او د«مصحف» نوم دصحابه كرامو رضي الله عنهم لخوا په هغه ليكل شوي كتاب باندي ايښودل شوی چه قرآنكريم پكښې ليكل شوی دی.

قرآنكريم د الله جل جلاله لخوا هغه وحيې ده چه جبريل عليه السلام د الله تعالى لخوا زمونږ د پيغمبر محمد ﷺ په زړه باندی نازل كړې دی، لكه چه الله جل جلاله فرمايي: ﴿وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ الْعَالَمِينَ * نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ * عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ * بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ﴾ الشعراء: ۱۹۲ – ۱۹۵.

ترجمه: بيشكه ددی قرآنكريم نازليدل دعالميانو دپالونكي لخوا شويدي، او راوړونكې يي جبريل أمين عليه السلام دی، او نازل كړې يي دی ستا پر زړه - أی محمد ﷺ -؛ ددي لپاره چه ته د الله سبحانه وتعالى له عذابونو څخه د ويروونكو له جملې ځينی شې، او دا قرآنكريم په واضحه عربي ژبه باندی دی.

او زمونږ خوږ پيغمبر محمد ﷺ له نورو پيغمبرانو عليهم الصلاة والسلام څخه بدل او نا آشنا كوم شي نه دی راوړی؛ ځكه دده ورونړو مخكنيو پيغمبرانو عليهم الصلاة والسلام ته به هم جبريل عليه السلام له الله تعالى څخه وحيې راوړله، او الله جل جلاله پخپله ددي لوي امانت د اداء لپاره هغه څوك غوره كوي چه ورته خوښه يي شي، الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ﴾ الحج: ۷۵.

ترجمه: الله سبحانه وتعالى غوره كوي له فرښتو نه رسولان، او هم يي غوره كوي -پيغمبران- له انسانانو څخه، بيشكه الله جل جلاله اوريدونكې او ليدونكې دی.

او الله عز وجل هغه څوك ډېر ښه پيژني چه د رسالت او نبوت لپاره صالح او مناسب وي، او هم هغه څوك چه ددي امانت لپاره صالح نه وي؛ ځكه دا ټول خلك د الله تعالى مخلوق دي، او هم هغه يي ښه پيژني، الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ وَيَخْتَارُ﴾ القصص: ۶۸.

ترجمه: ستا رب جل جلاله پيدا كوي هغه څه چه و يي غواړي، او غوره كوي هغه څوك چه و يي غواړي.

دوهم: د قرآنكريم نزول:

په پيغمبر محمد ﷺ باندي د وحيې نزول د دوشنبې په ورځ د رمضان د مياشتې په اوولسم تاريخ، شپږ سوه لسم ميلادي كال باندي په غار حراء كښې شروع شو، چه حراء دمكې مكرمې له غرونو څخه يو غر دی، كله چه جبريل عليه السلام محمد ﷺ ته غار حراء ته راغلو او دا آياتونه يي ورباندي نازل كړل چه: ﴿اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ * خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ * اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ العلق: ۱ – ۵.

ترجمه: ولوله ! په نوم د هغه رب او پالونکي چه دا هر څه يي پيدا کړي دي، او انسان يي له يوي ټوټي وينې څخه پيدا کړې دې، ولوله، او ستا رب او پالونکې ډير عزتمند او د مهرباني خاوند دې، هغه الله چه ښودنه يي کړې ده په قلم باندي، او انسان ته يي هغه څه ښودلي دي، چه مخکې له دي څخه پري نه پوهيده.

او دقرآنکريم همدا آياتونه لومړني آياتونه دي چه په رسول الله ﷺ باندي نازل شوي دي.

بيا پيغمبر ﷺ له دغه آيتونو سره خپل کور ته په داسې حال کښې لاړ چه زړه يي له ويرې څخه رپيده، او خپله قصه يي خپلې بي بي أم المؤمنين خديجه بنت خويلد رضي الله عنها ته وکړه، او ورته يي وويل: «بې شکه چه زه خو پخپل ځان باندي وويريدم».

هغې ورته وويل: «هيڅکله داسې نه ده، ته مه ويريږه، بلکه ته خوشحاله او مطمئن شه؛ زما دې په الله تعالى قسم وي چه الله تعالى هيڅکله تا نه شرموي؛ ځکه ته له خپلوانو سره خپلوي پالې، او له هغوي سره نيکي او ښيګړه کوې، او په خبرو کښې رښتيا وايې، او ټپ شوي او کمزوری له ځان سره په سورلۍ سوروې، او ميلمنو ته ميلمستيا ورکوي، او په هر ډول پيښو کښې له خلکو سره مرسته او کومک کوې».

بيا يي هغه ورقة بن نوفل ته بوتلو؛ ځکه هغه يو عالم او هوښيار سړې وو، نو خديجې رضي الله عنها ورته وويل: «أى کاکا ! ته خو دي ددي وراره قصه واوره» چه دې څه وايي؟

کله چه پيغمبر ﷺ خپله قصه وکړه، او هغه څه چه يي ليدلي وو ورته يي وويل، ورقة بن نوفل ورته وويل: «همدا ناموس يعنې جبريل عليه السلام همغه پرښته ده چه موسى عليه السلام ته يي هم وحيي راوړې وه، اې ارمان چه زه په هغه وخت کښې يو تکړه ځوان واي، او ارمان چه زه په هغه وخت کښې ژوندې واي کله چه تا خپل قوم له خپل کلي کور څخه وباسي» يعنې ما به ستا مرسته او کومک کړې وو.

نو رسول الله ﷺ ورته وويل: (آيا دوي به ما له خپل کلي هم وباسي؟)، ورقة ورته وويل: «هو، هيڅ دغه ستا په څير دين نه دې راوړې مګر له هغه سره دښمني شوې ده، او که زه هغه وخت ته ورسيدم چه ته پکښې ددغه دين اعلان کوې نو زه به ستا په کلکه مرسته او کومک وکړم»، خو ورقة بن نوفل بيا لږ وخت وروسته وفات شو.

او قرآنکريم په رسول الله ﷺ باندي ټول يو ځل نه دې نازل شوې، لکه چه مخکني کتابونه په پخوانيو پيغمبرانو عليهم الصلاة والسلام باندي ټول يو ځل نازل شوي وو.

بلکه قرآنکريم ددرويشتو کلنو په زمانه کښې لږ لږ او ټوټه ټوټه نازل شوې دې، کله به پوره سورت نازليده، او کله به د کوم سورت يو څو آياتونه نازليدل.

د قرآنکريم په لږ لږ او ټوټه ټوټه نازليدو کښې حکمت دا وو چه د خوږ پيغمبر محمد ﷺ زړه ورباندي کلک او قوي شي، او کله چه جبريل عليه السلام ورته وحيي راوړې نو ده ته ورباندې قوت حاصليږې او ملا يي پرې کلکيږي؛ تر څو د پيغمبرۍ په لومړنيو شپيو کښې د مشرکانو د سرغړونې او سر تمبګۍ، او دهغوي ددي دين سره ددښمنۍ په مقابل کښې ورته قوت او ثابت قدمي حاصله شي.

لکه چه الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا﴾ الفرقان: ۳۲.

ترجمه: او وایي کافران چه: ولی نه نازلولې شي په محمد ﷺ باندي قرآنکریم ټول یو ځلی؟ نو فرمایي الله جل جلاله چه: نازل کړې مو دې دا قرآنکریم لږ لږ ددي لپاره چه قوي کړو پدي قرآنکریم سره زړه ستا- په حفظ او فهم د معنی سره- او لوستلې دې مونږ دا قرآنکریم پر تا باندي لږ لږ په آرام لوستلو سره.

همداراز د قرآنکریم په لږ لږ نزول کښی یوه بله تربوي او روزنیزه ګټه شته او هغه دا چه مؤمنان هم د قرآنکریم په زده کړه او د هغه د احکامو په پوهیدو کښی په تدریجي شکل سره اشنا شي، چه پدي توګه د هغی زده کول په هغی باندی په عمل کولو کښی وار او تدرج وکړې شي؛ ترڅو د هغی زده کول او پری پوهیدل، او هم په هغی باندي د کفر او شرک له تیارو څخه د ایمان او توحید رڼا طرف ته وتل ورته آسان وي.

دریم: د قرآنکریم تدوین او لیکنه:

د نصوصو د حفظ او ساتني تر ټولو ښه وسیله د هغه لیکل دي، او هغه نص او خبره چه ونه لیکل شي د هیریدو امکان او احتمال یي ډیر وي، او هر کله چه قرآنکریم دقیامته پوری د خلکو د هدایت او لارښوونی لپاره نازل شوې وو، نو ډیر ضروري او اړین وو چه ولیکل شي.

نو ځکه خو قرآنکریم د پیغمبر محمد ﷺ له ځانګړی اهتمام څخه برخمن وو، پدي غرض یي خپلو ځینو هغو ملګرو او اصحابو رضي الله عنهم ته -چه لیک لوست یي زده وو- امر کړې وو چه قرآنکریم ولیکي، او هغوي یي د قرآنکریم لپاره خپل کاتبان او لیکوالان ټاکلي وو، چه په هغوئ کښی ډیر مشهور زید بن ثابت الأنصاري رضي الله عنه وو.

په رسول الله ﷺ چه به کله د قرآنکریم وحيی راغله، نو لومړې به یي هغه پخپله حفظ کولو، او بیا به یي دغه وحيی یو کاتب او لیکوال صحابي باندي ولوستلو چه ویی لیکي، او ویل به یي: (ضعوا هذه الآيات فی السورة التي يُذكَرُ فيها كذا وكذا).

یعنی دا آیاتونه په هغه سورت کښی کیږدئ چه فلانی فلانی شي یادونه پکښی شوی ده.

نو هغوئ ته به یی ددغه آیاتونو لپاره همغه ټاکلې سورت او دهغو ځاي ورپه ګوته کړ، او امر به یی وکړ چه دغه آیاتونه پکښی ولیکل شي، بیا به یی د هغه نازل شوي قرآنکریم په هکله خپلو صحابه کرامو رضي الله عنهم ته امر وکړ چه په دغو آیاتونو ځان پوهه کړي، او هم دغه آیاتونه حفظاً له یادو زده کړي، او په همدي توګه ټول قرآنکریم زمونږ دخوږ رسول الله ﷺ په ژوند کښی په ټوټو او څرمنو کښی ولیکل شو.

او جبریل علیه السلام به له رسول الله ﷺ سره هر کال یو ځل قرآنکریم اړولو، او په هغه کال چه رسول الله ﷺ وفات کیدلو دوه ځلی یي ورسره واړولو، او دا اړول د سورتونو او آیاتونو په همدی ترتیب سره وو چه اوس په مصاحفو کښی لیکل شوي دي، او د مسلمانانو په لاس کښی وجود لري؛ تر څو د الله تعالی هغه وینا رښتینی او محققه شي چه فرمایي: ﴿إِنَّ عَلَيۡنَا جَمۡعَهُۥ وَقُرۡءَانَهُۥ * فَإِذَا قَرَأۡنَٰهُ فَٱتَّبِعۡ قُرۡءَانَهُۥ﴾ القیامة: ۱۷ – ۱۸.

ترجمه: بیشکه پر مونږ باندي راجمع کول او راټولول ددي قرآنکريم دي په سينه ستا کښي، او لوستل ددی قرآنکريم دي پر ژبه ستا، نو کله چه مونږ ولوست دا قرآنکريم په ژبه د ملائکو، نو ته يي متابعت وکړه ددغه لوستلو، يعني غوږ ورته نيسه.

همدارنګه الله سبحانه وتعالی فرمايلي دي: ﴿سَنُقۡرِئُكَ فَلَا تَنسَىٰٓ﴾ الأعلی: ۶.

ترجمه: زر دي چه مونږ به ولولو پر تا باندي قرآنکريم په ژبه د جبريل اې محمد ﷺ نو بيا به يي ته نه هيروی.

څلورم: په صحيفو او ورقو کښي د قرآنکريم راجمع کول او راټولول:

د رسول ا الله ﷺ له وفات څخه وروسته لومړني راشد خليفه ابوبکر الصديق رضي الله عنه امر وکړ چه قرآنکريم په منظمو او مرتبو صحيفو کښي راټول شي؛ ځکه که د قرآنکريم حافظان وفات شي او يا هم هغه ټوټي او څرمنی چه قرآنکريم ورباندي ليکل شوي دي، تلف شي، نو چه دقرآنکريم کومه برخه له منځه ولاړه نشي، او ددي کار مشري د وحيی پخواني کاتب او ليکوال زيد بن ثابت رضي الله عنه په غاړه واخستله.

او کله چه قرآنکريم راټول شو، او د هغی دوباره کتنه او له صحت څخه ښه تأکد وشو چه دا ليکلي مصحف له هغه قرآن سره بلکل موافق او مطابق دي کوم چه په ټوټو او څرمنو کښي ليکل شوي او له هغه سره چه خلکو حفظاً په يادو ياد کړي وو، بيا نو دغه مصحف د ابوبکر الصديق رضي الله عنه په کور کښي وساتل شو.

او کله چه هغه وفات شو، نو بيا ددوهم خليفه عمر بن الخطاب رضي الله عنه په کور کښي وساتل شو، او کله چه هغه هم وفات شو، نو د أم المؤمنين حفصة بنت عمر رضي الله عنهما په کور کښي وساتل شو.

او کله چه د اسلام مقدس دين په نړۍ کښي خپور شو، او مسلمانان دی ته اړ شول چه له دوي سره دی ليکل شوي قرآن کريمونه وي چه په هغو کښي قرآنکريم لولي، نو ځينی صحابه کرامو رضي الله عنهم دريم خليفه عثمان بن عفان رضي الله عنه ته مشوره ورکړه چه د ټولو مسلمانانو لپاره يو مصحف وليکل شي، او په هغی باندي ټول مسلمانان سره راټول شي، او د اوسنو او روستنو مسلمانانو لپاره د امام او معتمدی نسخي په توګه وټاکل شي، نو عثمان بن عفان رضي الله عنه د صحابه کرامو هغه يو ټولي ته امر وکړ چه د قرآنکريم له حافظانو څخه وو، او ليکل يي هم زده وو، چه دغه کار په غاړه واخلي، چه ددوي سر کښي هم زيد بن ثابت رضي الله عنه راتلو.

او په دی کار کښي ددوي اعتماد به په هغه مصحف او صحيفو باندی وي چه د أبوبکر الصديق رضي الله عنه په وخت کښي پکښي قرآنکريم ليکل شوي وو، نو هغوئ دغه ټولی صحيفی په يو مصحف کښي راټولی کړی، او له هغی څخه يي څو نسخي وليکلی، او هر يو لوي اسلامي ښار ته تری يوه يوه نسخه وليږل شوه، او بيا يي نورو مسلمانانو ته امر وکړو چه له دغی معتمدی نسخي څخه ځانته نور مصاحف وليکي.

اوس په نړۍ کښي ټول مصحفونه - هغه که خطي نسخي وي، او که چاپ شوي مصحفونه وي - ددي ټولو اصل همغه مصحفونه دي چه د عثمان بن عفان رضي الله عنه په زمانه کښي ليکل شوي او

بیا نورو غتو غتو اسلامي ښارونو ته لیږل شوي دي، او ټول له هغو سره یو شان دي، او له هغو سره هیڅ اختلاف - په نص او ترتیب کښې- نلري.

او تر نن ورځې همدا لړۍ روانه ده چه مسلمانان د مصحف شریف په چاپولو ډیر ښه اهتمام کوي، او د چاپ دنوو وسایلو او نوی ټکنالوژۍ سره برابر او له هغو څخه په استفاده مسلمانان کوښښ کوي چه دقرآنکریم د نص ضبط په ډیره ښه اعلی درجې سره وشي، او په هغه رسم او طرز باندي ولیکل شي په کوم چه د عثمان بن عفان رضي الله عنه په زمانه کښې لیکل شوې وو، کوم چه په رسم عثماني باندي پیژندل کیږي.

په نبوي مدینه کښې د قرآنکریم د چاپ لپاره د ملك فهد مرکز هم ددغې لړۍ یوه ښکاره نښه ده، چه په قرآنکریم او دهغې په خدمت باندي د مسلمانانو عموماً او سعودي عربستان د حکومت خصوصاً د ډیر زیات اهتمام او حرص ښکارندوي دې، چه دوي خپل نهایي کوښښ او زیار باسي چه په ډیر ښه ډول د قرآنکریم خدمت وشي او د نړۍ مسلمانان په آساني سره وکولي شي چه قرآنکریم ورته په ډیر ښایسته چاپ، مزیدار شکل، ښه تجلید او په پوره حفظ او اتقان سره په لاس ورشي.

پنځم: د مصحف شریف ترتیب او تقسیم:

قرآنکریم د «الفاتحة» په سورت باندی شروع کیږي، او د «الناس» په سورت باندي پاي ته رسیږي، او ټول سورتونه یې (۱۱۴) یو سل او څوارلس دي، او دا ترتیب یې توقیفي دې، یعنی له رسول الله ﷺ څخه رانقل شوې دې، او همدا موجوده مصحف په نزولي ترتیب باندي مرتب نه دې؛ ځکه په نزول کښې لومړني سورت د «العلق» سورت دې، او هغه په مصحف کښې (۹۶)م سورت دې، او صحابه کرامو رضي الله عنهم به د آیاتونو او سورت ترتیب د رسول الله ﷺ له قراءت څخه پیژندلو، کله چه به هغه ﷺ قرآنکریم لوستلو.

او اوسني مصاحف (۳۰) دیرش پارو ته ویشل شوې دې، او هره پاره یې دوه (نصفونو، نیمو) او څلورو پاوونو ته ویشل شوی ده، او دا تقسیم اکثر یې د علماوو د اجتهاد په اساس دې، او غرض یې دا دې چه د قرآنکریم لوستل ورته پدی شکل آسان وګرزي، او په تلاوت او حفظ کښې مسلمانان وکولې شي اندازه یې کړي، او په آسانه یې اندازه وپیژني.

شپږم: د قرآنکریم زده کول:

مسلمانانو د قرآنکریم په زده کولو او دهغې د نص په حفظ کولو او دهغې په تلاوت او لوستلو باندي ډیر سخت اهتمام کړې دې، تر څو هغه شان یې ولولي لکه چه په رسول الله ﷺ باندی نازل شوې دې، دصحابه کرامو رضي الله عنهم قاریانو او حافظانو دغه قرآنکریم - هغه شان چه یې له رسول الله ﷺ څخه زده کړې وو- خپلو شاګردانو تابعینو ته ورزده کړ، ترڅو دقرآنکریم نص یې ورته ضبط کړ، او په هر آیت کریمه کښې به یې ودرول ترڅو په معنا یې ښه پوهه شي، چه په دې توګه تابعین رحمهم الله په قرآنکریم ښه پوهه شول، او هم یې پرې عمل کول زده کړل.

بیا د تابعینو حافظانو او دقرآنکریم متخصصینو علماو د قرآنکریم د لوست او لولولو لپاره مدرسې جوړې کړې، او په هغه طریقه به یې خپلو شاګردانو ته قرآنکریم ورزده کولو کومه طریقه چه دوي له

صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه زده کړی وه، لکه په مختلفو وجوهو سره دقرآنکریم تلاوت کول، د نص ضبط او حفظ، د حروفو او کلماتو شمار، د سورتونو او آیاتونو ترتیب، د قراءت اتقان او د ترتیل کیفیت، نو پدي ډول همغه شان چه دوي قرآنکریم زده کړې وو، همغه طریقه مسلسله پاتی شوه، چه قرآنکریم لفظ او معاني زده کیږي، او الفاظ یي حفظاً یادیږي، او په همغه ډول لوستل کیږي، او هر زده کونکې یي له خپل شیخ او معلّم او قاري څخه مخامخ خوله په خوله په عربي فصیحه ژبه ترو تازه - لکه څرنګه چه په رسول الله ﷺ باندی نازل شوې وو - زده کوي.

قرآنکریم په بیلا بیلو قراءتونو باندي لوستل کیږي، چه په حقیقت کښی دا د قرانکریم د کلماتو، حروفو، او په هغه د نطق د طریقی څرنګوالي ښايي.

او دا قراءتونه هم تابعینو رحمهم الله له خپلو استاذانو حافظانو او قاریانو صحابه کرامو رضي الله عنهم څخه زده کړي وو، او هغوي هم له رسول الله ﷺ څخه مخامخ زده کړي وو، او هغوي ته یي په دغه قراءتونو باندي د قرآنکریم د لوستلو اجازه هم ورکړی وه.

له دغه قراءتونو څخه په دی وخت کښي ډیر مشهور یي:

۱/ د عاصم رحمه الله قراءت دې کوم چه دهغه شاګرد حفص بن سلیمان رحمه الله یي روایت کوي.

۲/ د نافع رحمه الله قراءت دې کوم چه د هغه شاګرد عثمان بن سعید یی - چه د «ورش» په لقب شهرت لري- روایت کوي.

او له دوي څخه یو دُوْرِي رحمه الله روایت دې چه له عَمْرو البصريّ رحمه الله څخه یي نقل کوي، او همدا شان د قالون روایت چه له نافع رحمه الله څخه یي نقل کوي.

اووم: د قرآنکریم تفسیر:

د قرآنکریم د تفسیر معنی: یعنی د هغی د معانیو وضاحت او بیان، او دیو کلام او خبری څخه هدف او مقصد هم تر هغه په لاس نه راځي تر څو چه اوریدونکې دهغه په معانیو او مفهوم پوهه نشي؛ نو ځکه خو الله تعالی د قرآنکریم لوستونکي دي ته هڅولي دي چه د قرآنکریم د معانیو په فهم او تدبر کښی سوچ او فکر وکړي، او هغه په پوره کوښښ زده کړي، لکه چه الله سبحانه وتعالی فرمايي: ﴿كِتَٰبٌ أَنزَلۡنَٰهُ إِلَيۡكَ مُبَٰرَكٞ لِّيَدَّبَّرُوٓاْ ءَايَٰتِهِۦ وَلِيَتَذَكَّرَ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ﴾ ص: ۲۹.

یعنی الله تعالی فرمايي: دا قرآنکریم داسی کتاب دې چه مونږ تاته- اي محمد ﷺ - در نازل کړې دې، د برکت والا کتاب دې، او ددي لپاره مو درلیږلي دې چه دا خلک یي په آیاتونو کښي سوچ تدبر او فکر وکړي،او بل ددي لپاره چه عقلمند خلک ورڅخه پند او نصیحت واخلي.

او د تدبر معنی: په هغه پوهیدل او په هغه کښي سوچ او فکر کول.

کله چه به صحابه کرامو رضي الله عنهم ته د کوم آیت کریمه په معنی کښی اشکال پیدا شو او پوهه به پری نشو، نو رسول الله ﷺ به ورته د هغی تفسیر او توضیح کوله، خو لدي کبله چه هغوئ په هغه وخت کښی په لغت عربي کښی ښه مهارت لرلو، او قرآنکریم هم د هغوئ په ژبه نازل شوې وو، نو د قرآنکریم د ډیرو آیاتونو د تفسیر له پوښتنی څخه مستغني وو؛ ځکه دغه ډیر څه هغوئ ته معلوم

او ورځرګند وو، خو څومره چه کلونه او زمانه تیره شوه، او د نبوت د زماني نه خلك لرې شول، نو هغومره د خلکو تفسیر ته ضرورت زيات شو.

نو هغه څه چه د قرآنکریم د آیاتونو په تفسیر کښې له رسول الله ﷺ، صحابه کرامو رضي الله عنهم او دهغوئ له شاګردانو تابعینو څخه رانقل شوي دي د علم تفسیر لومړنی أساس تشکیلوي، چه هغی ته د علم تفسیر په اصطلاح کښې تفسیر بالمأثور وايي، کوم چه د قرآنکریم په فهم او پوهه کښې ډیره مهمه وسیله ګڼل کیږي.

ځکه دا ډول روایات مونږ ته د قرآنکریم په هکله د لومړنیو پیړیو فهم او پوهه څرګندوي؛ ځکه هغه پخوانی پیړۍ د قرآنکریم په فهم او د الله تعالی او درسول الله ﷺ په مراد باندي تر نورو ښه پوهیدل؛ پدي سبب چه یو خو هغوئ په لغت عربي کښې ډیره پوهه لرله، او بل دا چه دوئ هغه واقعات پخپله پخپلو سترګو لیدلي وو د کومو د حکم د بیان لپاره چه دغه آیاتونه نازل شوي وو.

۱/ د تفسیر انواع او ډولونه:

د علم تفسیر د علماو نظرونه دعلمي اهتمام په سبب بیلابیل دي، لدي کبله مختلف ډول تفسیرونه لیکل شوي دي، چه ځیني یي د قرآنکریم په لغوي اړخ زیات اهتمام کوي، ځیني نور یي بیا په قرآنکریم کښې د فقهي احکامو اړخ زیات څیړي، او ځینی نور یي نور اړخونه څیړي، لکه: تاریخي، عقلي او سلوکي او داسی نور اړخونه، نو لدي کبله علماء تفسیرونه دوه ډولو ته ویشي:

لومړی: تفسیر بالمأثور: او دا هغه تفسیر دې چه د آیت کریمه تفسیر په هغو روایاتو سره کوي چه له رسول الله ﷺ یا دصحابه کرامو رضي الله عنهم او یا د تابعینو رحمهم الله څخه نقل وي.

دوهم: تفسیر بالرأي والاجتهاد: او دا هغه تفسیر دې چه په قرآنکریم کښې له فکر، تدبر او اجتهاد په وسیله وي، او په صحیح علمي اصولو باندي ولاړ وي.

۲/ د تفسیر ښه طریقه او د هغی قواعد او ضوابط:

د تفسیر په تیرو یادو شوو ډولونو کښي تفسیر بالمأثور لمړیتوب لري؛ ځکه دا هغه تفسیر دې چه له رسول الله ﷺ یا صحابه کرامو رضي الله عنهم او یاهم لـه تابعینو رحمهم الله څخه رانقل شوې وي، او همدوي د الله جل جلاله په مراد له بل هر چا ښه پوهیږي، او کله چه د قرآنکریم د آیاتونو تفسیر لازیات وضاحت او بیان ته حاجتمند شي، او په تفسیر بالمأثور کښی دغه مقصد نه وي اداء شوې، نو یو مفسر باندی لازم دي چه لاندیني قواعد او ضوابط په نظر کښی ونیسي:

۱/ د آیاتونو د تفسیر په وخت کښی د هغه څه مراعات کول چه په تفسیر بالمأثور کښی ثابت وي، نو داسی تفسیر دی نکوي چه د تفسیر بالمأثور سره ټکر ولري.

۲/ تفسیر باید د شریعت له هغه عامو أصولو او قواعدو سره موافق وي چه د قرآنکریم په نورو آیاتونو کښی راغلي وي، او یا هم د پیغمبر ﷺ په صحیحو سنتو کښی بیان شوي وي، نو یو مفسر باید پخپل تفسیر کښی داسی څه راوړلو څخه ځان وساتي چه له دغه عامو أصولو او قواعدو سره ټکر ولري؛ ځکه د قرآنکریم ځینی آیاتونه د ځینی نورو تفسیر او توضیح کوي، خو دغه آیاتو پخپل منځ کښی سره ټکر او تعارض نلري، او همدارنګه نبوي سنت هم د هغه څه توضیح او بیان کوي چه په قرآنکریم کښی په اجمال سره ذکر شوي وي، نه دا چه دهغی معارضه کوي.

۳/ مفسر باید د لغت عربي قواعدو باندي پوره علم ولري، لکه دالفاظو دلالتونه، د جملو ترکیب، د یو لفظ یا دجملی استعمال او په هر ځاي کښی د هغی مقصود او معنی؛ ځکه قرآنکریم په عربي ژبه نازل شوې دې، نو باید د عربي ژبی د قواعدو په رڼا کښی تفسیر او توضیح شي.

۴/ اړینه اوضروري ده چه دمتشابهاتو آیاتونو تفسیر دمحکمو آیاتونو په رڼا کښی وشي؛ ځکه د قرآنکریم ځینی آیاتونه د ځینو نورو تفسیر او توضیح کوي، او د قرآنکریم أکثر آیاتونه محکم او د معانیو په لحاظ واضحه او څرګند دي، خو ځینی آیاتونه یي متشابه دي، چه معاني یا دلالت یي ښه واضح نه وي، کله کله په ځینو لوستونکو باندي د هغی تفسیر ګرانیږي، نو کله چه د دغه متشابه آیاتونو تفسیر په نورو محکمو آیاتونو سره وشي، نو معنا یي ښه واضحه کیږي، الله سبحانه وتعالی فرمایي: ﴿هُوَ الَّذِيٓ أَنزَلَ عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ مِنۡهُ ءَايَٰتٞ مُّحۡكَمَٰتٌ هُنَّ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ وَأُخَرُ مُتَشَٰبِهَٰتٞۖ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمۡ زَيۡغٞ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَٰبَهَ مِنۡهُ ٱبۡتِغَآءَ ٱلۡفِتۡنَةِ وَٱبۡتِغَآءَ تَأۡوِيلِهِۦۖ وَمَا يَعۡلَمُ تَأۡوِيلَهُۥٓ إِلَّا ٱللَّهُۗ وَٱلرَّٰسِخُونَ فِي ٱلۡعِلۡمِ يَقُولُونَ ءَامَنَّا بِهِۦ كُلّٞ مِّنۡ عِندِ رَبِّنَاۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّآ أُوْلُواْ ٱلۡأَلۡبَٰبِ﴾ آل عمران: ۷.

ترجمه: الله جل جلاله هغه ذات دې چه نازل کړې یي دې پر تاباندی کتاب(قرآن)، چه ځینی له دغه قرآنکریم څخه محکم آیاتونه دي، چه معاني یی ښکاره دي، دا محکم آیاتونه د کتاب (قرآن) اصل دې، او ځینی نور آیاتونه یي متشابهات دي، چه معاني یي ښه واضحه او ښکاره نه دي، نو هغه کسان چه دهغوي په زړونو کښی کوږوالې وي، نو هغوي وروپسی کیږي په هغو آیاتونو پسی چه هغه متشابهات وي، او معاني یي ښه واضح نه وي له دي قرآنکریم څخه؛ لپاره د فتنی لټولو، او دهغی د حقیقي معنی پیژندلو په خاطر، او دهغه متشابه آیت تأویل او تفسیر د خپل خواهش موافق وګرزوي، حال دا چه په حقیقي معنی ددی متشابهاتو باندی بل څوک نه پوهیږي پرته له الله تعالی او راسخینو علماو څخه، هغوئ وايي: مونږ ایمان راوړې دې په دی قرآنکریم چه هغه محکم وي او که متشابه؛ ځکه ټول زمونږ د رب له لوری رانازل شوي دي، او پند نه اخلي مګر خاوندان د خالصو عقلونو.

۵/ علمي ثابت حقائقو باندی د کوني آیاتونو د تفسیر په مهال استئناس کولې شي، خو مفسر باید ددغه شان علمي نظریاتو د قرآنکریم په تفسیر کښی له ننباسلو څخه اجتناب وکړي او له دغه کار څخه ځان وساتي، ترڅو د قرآنکریم په تفسیر کښی هغه څه ونه ویل شي چه قرآنکریم هغی ته هیڅ تعرض نه وي کړې.

۶/ مفسر ته اړینه او ورباندی لازمي ده چه ډیر احتیاط وکړي او ځان له هغو فاسدو تأویلاتو څخه وساتي چه د الله جل جلاله د کلام معاني له هغو شرعي معانیو څخه لری باسي چه زمونږ پاک شریعت راوړي دي، او یا یي د عربي ژبی له قواعدو څخه وباسي، او په دي کښی دده نیت ته اعتبار نشته، چه دده نیت ددغه آیتونو تحریف او له خپلی صحیح معنی څخه بلی معنا ته اړول وي، او که دغه نیت یی نه وي، خو سبب یي د عربي قواعدو او دلالتونو او د استعمال په وجوهو باندی د ناپوهی له کبله وي، او یا هم د هغه فاسدو معانیو له کبله وي چه مفسر یي توهم کوي، او په حقیقت کښی د الله کلام له هغی څخه منزه او پاک وي.

اتم: دقرآنکریم اعجاز:

اعجاز په اصطلاح کښی هغه صفت دې چه د یو کار کولو یا رأي یا تدبیر کښی له انساني قدرت او توان څخه پورته وي.

او معجزه يوه حادثه اصطلاح ده چي په متاخرينو كښي يې اطلاق د پيغمبرانو د نبوت او رسالت په نښو، آيتونو، او براهينو باندي كيږي، په قرآنكريم كښې دا لفظ ددي معنى لپاره نه دې استعمال شوې، بلكه ددي معنى لپاره نور ألفاظ استعمال شوي دي، لكه «آية»، «برهان» او داسې نور.

او قرآنكريم د الله جل جلاله كلام دې، په معانيو كښې يې داسې كمال، او په آيتونو، كلماتو او الفاظو كښې يې داسې كمال جمال او ښايست دې چه مخلوقات له دغسې آيتونو له راوړلو څخه عاجز دي، الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿الٓر ۚ كِتَٰبٌ أُحْكِمَتْ ءَايَٰتُهُۥ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ خَبِيرٍ﴾ هود: ۱.

ترجمه: قرآنكريم يو داسې كتاب دې چه محكم كړې شوي دي آياتونه يې، بيا په تفصيل سره بيان شوي دي دغه آياتونه، (او رالیږل شوې دې دا قرآنكريم) له طرفه دهغه الله تعالى چه ډېر د حكمت خاوند دې، او ډېر ښه خبردار دې.

مشركانو ډېر كوښښونه كړي دي چه د قرآنكريم د مصدر په هكله خلكو ته شكونه پيدا كړي، او په دي لاره كښي يي ډېر دروغ جوړ كړي دي، او شبهات يي راپارولي او خوری كړي دي.

نو ددوئ په مقابل كښې الله سبحانه وتعالى داسې آياتونه نازل كړل چه دغه مخالفينو ته چيلنج وركوي چه كه دوي كولې شي نو ددي قرآنكريم په څېر دي يو كتاب جوړ كړي، يا دي ددي په شان لس سورتونه راوړي، كه دا هم نشي كولې نو يو سورت دي راوړي، كه چيرى دوي پخپلو دعواو كښې رښتينى وي، خو دوئ ددي ټولو څخه عاجز او كمزوري شول، او پدي قانع شول چه قرآنكريم كه څه هم په عربي ژبه دې، خو د هغه څېر كتاب جوړول ممكن كار نه دې، الله تعالى فرمايي: ﴿أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّثْلِهِۦ وَادْعُوا۟ مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ﴾ يونس: ۳۸.

ترجمه: آيا وايي دوي چه(محمد) له ځانه جوړ كړې دې دغه(قرآن)، ووايه (اى محمده دوي ته): چه نو راوړئ يو سورت په شان دده (په اعجاز كښى)، او راوبولى تاسې هغه څوك چه ستاسې له لاسه كيږي (دى معارضى ته لپاره د معاونت خپل) غير له الله تعالى څخه كه يي تاسي صادقان (رښتينى په دغه دعوا د افتراء كښى).

بيا قرآنكريم يو ډاګيزه اعلان وكړ او دا خبره يې ورسره زمزمه كړه چه بشر خو لا څه چه پيريان هم د قرآنكريم په شان د كوم كتاب د راوړلو او جوړولو څخه عاجز او ناتوانه دي، بلكه كه دا انسانان او پيريان سره راټول شي او يو له بله سره مرسته هم وكړي، نو دا كار نشي كولې، الله سبحانه وتعالى فرمايي: ﴿قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأْتُوا۟ بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْءَانِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِۦ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا﴾ بنى اسرآئيل: ۸۸.

ترجمه: اي پيغمبره ! ته خلكو ته ووايه: كچيرى انسانان او پيريان په دي خبره سره راټول شي چه ددي قرآنكريم په څېر يو كتاب راوړي او جوړ يي كړي، نو هيڅكله يي نشي جوړولې، اګر كه ددوي ځينى له ځينى نورو سره كومكيان او ملاتړي هم شي.

او قرآنكريم ځكه معجِز دې چه د الله تعالى كلام دې، او د مخلوق كلام له هغه سره هيڅ مشابهت او يو رنګوالې نلري، بلكه دا قرآنكريم د لغت، كلماتو ، آياتونو په اعتبار او د هغه بلاغي او بياني صورتونو، او په دي كښې د پخوانيو او روستنيو اخبارو او رښتينو قصصو او حكاياتو، او احكامو او

تشریعاتو، او د نفسي او وجداني تأثیر، او علمي حقایقو په اعتبار د رسول الله ﷺ په رسالت او ددي قرآن په صداقت یوه معجزه او نښه ده.

او قرآنکریم څومره د طبیعي علومو علماء، د فلکیاتو، ژویو او طب او داسې نورو علماء او متخصصین په دهشت او حیرانتیا کښې اچولي دي؛ ځکه قرآنکریم د علمي حقایقو او هغه کوني اشاراتو څخه چه دغه علماء پکښې مشغول وي په داسې دقیق علمي عباراتو بحث او خبرې کوي چه د چا په خیال کښې نه راځي چه له داسې امي شخصیت څخه دي صادر شي پخپله هم په یوه امّي امت کښې لوي شوې وي، او په یو داسې عالم کښې پاتې شوې وي چه له دغه معلوماتو څخه هیڅ درک ورته نه وي.

همدا سبب وو چه یو شمیر خلکو چه پکښې سوچ او فکر وکړ نو مسلمانان شول؛ ځکه هغوي پدي پوهه شول چه هغه څه چه قرآنکریم کښې راغلي دي ممکن نه ده چه هغه دي د بشر کلام وي، بلکه هغه د بشر د خالق، او ددې ټول کون د خالق او پیدا کوونکي کلام دې.

په قرآنکریم کښې څومره ډیر دلایل دي چه هغه په دې خبره دلالت کوي چه الله تعالی په ربوبیت، الوهیت او اسماو صفاتو کښې یو لا شریک له دې، چه څومره نا آشنا او غیر مسبوق کون یې پیدا کړې دې، الله تعالی فرمایي: ﴿سَنُرِيهِمْ آيَاتِنَا فِي الْآفَاقِ وَفِي أَنفُسِهِمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُ الْحَقُّ ۗ أَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ أَنَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ﴾ حٰمٓ السجدة: ۵۳.

ترجمه: زر دې چه وبه ښایو دوئ ته خپل دلایل د اسمانونو او ځمکې په اطرافو او څنډو کښې، او ددوي په ځانونو کښې به یې هم ورته وښایو، تردې چه دوي ته ښه واضحه او څرګنده شي چه دا قرآنکریم حق او رښتیني دې، آیا ستا رب او پالونکې (الله تعالی) کافي او بس نه دې چه هغه په هر څه باندې ګواه او شاهد دې؟.

نهم: د قرآنکریم د معانیو ترجمه او ژباړه:

ترجمه دې ته وایي چه یو کلام او خبره د یوې ژبې څخه بلې ژبې ته وژباړل شي، او هیڅ ترجمه له مشکلاتو څخه خالي نه وي؛ ځکه د یو کلام لغوي صیاغت او جوړښت د یو نص له مکوناتو څخه مهم عنصر دې، او کله کله بیا د یو نص په ژباړه کښې همغه لغوي صیاغت ساتنه ګرانه وي، اګر که دغه ترجمه د هغو نصوصو هم وي چه انسانانو یې صیاغت او تألیف کړې وي.

نو که دغه ژباړه د قرآنکریم د نصوصو وي نو دا ګرانوالې نور هم زیاتیږي؛ ځکه قرآنکریم د الله سبحانه وتعالی کلام دې، او هم له هغه څخه په عربي ژبه نازل شوې دې، چه لفظ او معنا دواړه یې د الله تعالی لخوا د وحیې په واسطه راغلي دي، او د یو انسان له وسه پوره نه ده چه دا دعوا وکړي چه هغه د قرآنکریم په ټولو پوره معانیو باندې احاطه کړې ده، او یا دا چه ژباړن کولې شي چه د قرآني نص او الفاظو دوباره صیاغت او جوړونه په هغه طریقه کولې شي په کومه طریقه چه هغه الله تعالی په عربي ژبه رالیږلې دې.

نو سره له دې چه د قرآنکریم ترجمه او ژباړنه یو ډیر ګران کار دې، خو سره له دې هم د مسلمانانو علماء په دې خبره ډیر تاکید کوي چه د نړۍ ټولو خلکو ته – چه هغوي په هره ژبه خبرې کوي– د قرآنکریم او په هغې کښې د راغلو پیغامونو رسول هم یو ډیر ضروري کار دې، او دا کار پر ته له دې چه دقرآنکریم ترجمه وشي، او وژباړل شي په بله طریقه سر ته نه رسیږي.

او نورو ژبو ته د قرانكريم ژباړه په څو ډوله ده:

١/ دا چه د قرآنكريم د معانيو ترجمه او ژباړه وشي پرته له كوم تفسير څخه، يعنى يواځې د قرآنكريم دالفاظو معاني بلې ژبې ته وژباړل شي.

٢/ دا چه د ترجمې او ژباړې برسيره څه توضيح او تفسير هم ورسره ذكر شي، نو دا به داسې وي لكه چه له عربي ژبې پرته پر بله ژبه د قرآنكريم تفسيرونو څخه يو تفسير وي.

خو د قرآنكريم د معانيو ترجمه او ژباړه كه هر څومره دقيقه وي، او هر څومره كه مترجم او ژباړن په دواړو ژبو ښه مهارت ولري، او د قرآنكريم د آياتونو په معانيو باندې ښه احاطه هم ولري، خو سره له دې ټولو دغه ترجمې او ژباړې ته قرآن نه ويل كيږي، ددې خبرې لاملونه دوه دي:

لومړې دا چه قرآنكريم د الله تعالى كلام دې او د الله تعالى لخوا په عربي ژبه نازل شوې دې، او هغه د بيان، ضبط او قوت په اعلى درجه كښې دې، نو ددې د آياتونو په بله ژبه صياغت او تأليف ددې لپاره كافي ده چه دغه ترجمې ته قرآن ويل او په قرآن نومول يو باطل كار دې.

دوهم دا چه ترجمه او ژباړه د مترجم او ژباړن لـه هغه فهم او پوهـې څخه تعبير دې چه دې يې د قرآنكريم له معانيو څخه فهموي، نو لكه څرنګه چه په عربي ژبه يو تفسير ته قرآن نه ويل كيږي، نو همدارنګه دقرآنكريم د معانيو ترجمې او ژباړې ته هم قرآن ويل ممكن نه دي.

خو ددې لپاره چه د قرآنكريم د معانيو يوه ترجمه او ژباړه مقبوله او د علماو په نزد منل شوې ترجمه او ژباړه وي بايد هغه ضوابط او قواعد چه علماو د قرآنكريم د معانيو د بيان لپاره ايښي دي په دغه ترجمه او ژباړه كښې مو جود وي.

او په عين وخت كښې مترجم او ژباړن له دې څخه ځان وساتي چه د قرآنكريم د ترجمې په وسيله خلكو كښې غلطې او محرّفې معناګانې خپرې كړي، او يا ترجمه په هغه څه باندې مشتمله وي چه دمسلمانانو شعايرو او مقدساتو ته پكښې سپكاوې او بد وضعيتي وي، او دا داسې څه دي چه په يو شمير هغو ترجمو كښې شته كومې چه دمستشرقينو او يا اسلام ته په درواغو منسوبو خلكو لخوا ليكل شوې دي، دوي په اصل كښې فاسدې عقيدې لري، چه له دې كبله كوشش كوي ددې عظيم اسلام نبې او شعارونه ونړوي، او د مقدس دين اسلام صحيح عقيدې او غوره شريعت كښې طعن ته لار پيدا كړي.

له همدې كبله د قرآنكريم د چاپولو لپاره دملك فهد مركز د قرآنكريم د موثقو او صحيحو ترجمو او ژباړو چاپ او خپرونه په غاړه واخستله، ترڅو وكولاي شي د قرآنكريم لوړ او اعلى پيغام هغه خلكو ته –چه په عربي ژبه نه پوهيږي،– په ښه شان د هغوي په خپلو ژبو ورسول شي.

والحمد لله رب العالمين، وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحابته أجمعين، والتابعين ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين.

# سُورَةُ الفَاتِحَةِ

اول جزء اول منزل

«د«الفاتحة» سورت مکي دی، (۷) آیتونه لري»

«د«المدثر «سورت نه وروسته نازل شوی دی، په تلاوت کې (۱) او په نزول کې (۵) سورت دی، او (۱) رکوع لري»

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ①

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان او ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** «رحمن» او «رحيم» دواړه دمبالغې صيغې دي، مګر په «رحمن» کې له «رحيم» څخه مبالغه زياته ده، په دغه ترجمه کې ددغو ټولو نکتو لحاظ شوی دی.

اَلْحَمْدُ لِلَّهِ

ټولې ستاينې ( دکمال صفتونه) خاص الله لره دي.

**تفسير:** تر ټولو ښې او غوره ستاينې (صفتونه) چې له پيله تر آخره پورې شوې دي، يا کيدونکي دي هغه واړه خاص الله تعالى لره ښايي، ځکه چې الله تعالى د هر نعمت او هر څيز پيدا کوونکی او بخښونکی دی، او ښښنه يې عامه ده که بې واسطې وي او که په واسطې سره وي.

**تنبيه:** دفاتحې په سورت کې الله تعالى د (۷) څيزونو يادونه کړې ده:

(۱) دنعمت يادونه لکه چې فرمايي:

رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ②

چې پالونکی دټولو مخلوقاتو دی.

**تفسير:** دمخلوقاتو جمعي ته (عالم) ويل کيږي، نو لدې کبله دجمعې په شکل نه راوړل کيږي، مګر په دې آيت کې دعالم دهر جنس دښودلو لپاره دجمعې په شکل راغلی دی، لکه دملائکو عالم، دانسانانو عالم، دپيريانو عالم، او نور تر څو چې دا خبره ښه روښانه شي، چې دعالم ټول افراد دالله تعالى مخلوق دی.

(۲) دښو ښو څيزونو د ورکولو او بخښلو تمه او هيله (اميد) لکه چې فرمايي:

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ③

ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی

**تفسير:** يعنې ټولې ستاينې (صفتونه) خاص الله تعالى لره دي، چې دټولو مخلوقاتو پالونکی او روزونکی (تربيت کوونکی) دی، او ډېر زيات مهربان دی چې هر ساکښ (ذي روح) ته د روغ، بدن او رزق ورکوونکی دی، او پوره رحم کوونکی دی چې يوازې مؤمنانو ته داجر او ثواب، دجنت دنعمتونو او خپلې رضا او ديدار بخښونکی دی.

(۳) درب العزت «**جل شأنه وأعظم برهانه**» په عظمت او قدرت کې فکر کول لکه چې فرمايي:

مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ۝

څښتن (مالك) (دټولو امورو) دورځې دسزا دی.

تفسیر: دسزا د ورځې (قیامت) دتخصیص لومړۍ وجه داده: چې په هغه ورځ به داسې لویې او ویرونکې پېښې (حادثې) واقع شي چې دهغو په شان به نه پخوا تېرې شوې وي، او نه به وروسته راشي، بله وجه یې داده: چې په هغه ورځ به د الله تعالی دپاک ذات له حقیقي حکومت څخه پرته دبل هیچا کوم ظاهري او مجازي واک (اختیار) او حکومت هم هیڅ نه وي ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۖ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ (٢ رکوع، دالمؤمن (غافر) سورت).

(۴) په عبادت کې اخلاص لرل لکه چې فرمایي:

اِيَّاكَ نَعْبُدُ

خاص تاته عبادت کوو.

تفسیر: مونږ یوازې ستا عبادت کوو، او خاص له تا څخه مرسته (مدد) غواړو، ښکاره ده چې دغسې خطاب پر اختصاص ډیر ښه دلالت کوي.

(۵) دمرستې (مدد) غوښتنه لکه چې فرمایي:

وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ۝

او خاص له تا څخه مرسته (مدد) غواړو.

تفسیر: له دې آیت شریف څخه معلومیږي چې بې دالله تعالی له پاک ذات څخه بل چا څخې ما فوق الأسباب مرسته غوښتل بیخي روا نه دي.

(۶) دهغې سمې او روښانې لارې د ښودلو غوښتنه چې مقصود ته رسوونکې ده، لکه چې فرمایي:

اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۝

وښیه مونږ ته لاره سمه، لاره دهغو کسانو چې انعام کړی تا پر هغو باندې

تفسیر: پر هغو کسانو چې انعام شوی دی څلور طایفې دي:

(۱) پیغمبران. (۲) صدیقین. (۳) شهداء. (۴) صالحین. ددغو څلورو طایفو تصریح دپاک قرآن په بل ځای کې شوې ده، لکه د النساء سورت په ۶۹ آیت کې چې فرمایي: ﴿فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا﴾ ځینو علماوو ویلي دي: چې مطلب له ﴿الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ﴾ څخه «یهود» او له ﴿الضَّآلِّيْنَ﴾ څخه «نصاری» مراد دي، چې ددې مطلب دتاییدولو لپاره ډېر آیتونه او روایتونه شاهد دي، له ﴿الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾ یعنې له مستقیمې لارې څخه پاتې کسان دوه ډوله دي: یو ډول هغه کسان چه په ناپوهۍ سره له سمې لارې څخه محروم او بېرته پاتې وي، بل هغه کسان دي چې دوی سره له پوهې قصدا سرکشي غوره کړیده، پخوانې او وروستنې ګمراهان له دغو دوه وو طایفو څخه وتلی نشي، «نصاری» په لومړۍ او «یهود» په دویمه طایفه کې داخل دي.

(۷) له خرابو او ناوړو (غلطو) کارونو څخه دځان ساتلو غوښتنه او دپاکۍ او عصمت امید لکه چې فرمایي:

غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ۝٧

نه «لاره دهغو بدو کسانو چې» غضب کړی شوی پر هغو باندې او نه «لاره دهغو بدو کسانو چې» ګمراهان دي.

**تفسير:** (يعنې مونږ ته دهغو کسانو سمه او صافه لاره وښيه چې په هغو باندې انعام شوی دی، او له هغو کسانو له کړو وړو لارو مو چې پرې غضب شوی او ګمراهان دي چپ (بچ) کړه، او له بدانو له متابعت څخه مو وساته).

الله تعالى دغه سورت دخپلو بندګانو له ژبو څخه فرمايلی دی، يعنې کله چې تاسو زمونږ دربار ته حاضريږئ نو له مونږ څخه دا رنګه سوال وکړئ، نو ځکه ددې سورت يو نوم «تعليم المسئله يعنې دغوښتلو ښودنه » هم دی.

ددې سورت په لومړۍ برخه کې دالله تعالى ثنا او صفت دی، دويمه برخه يې دبندګانو ددعا لپاره ده.



# سُورَةُ البَقَرَة

«د «البقرة» سورت مدني دی، پرته له (۲۸۱)م آیت څخه چې د «حجة الوداع» په کال په منی کې نازل شوی دی».

«دوه سوه شپږ اتیا (۲۸۶) آیتونه او څلوېښت (۴۰) رکوع لري».

«د » المطففين «له سورت څخه وروسته نازل شوی دی، په تلاوت کې (۲) او په نزول کې (۸۷) سورت دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان او پوره رحم کوونکی دی.

الٓمٓ ﴿۱﴾

تفسير: دغو حروفو ته «مقطعات» وايي، ددغو حروفو په اصلي معنا باندې پرته له الله تعالی څخه بل هيڅوک نه شي پوهيدی، او څوک وائي چه دغه حروف د الله تعالی او دده درسول صلی الله عليه وسلم تر منځ مخصوص رموز دي، چې مونږ ته دځينو مصالحو او حکمتونو لامله نه دي راښکاره شوي.

ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ فِيْهِ

دا کتاب نشته هيڅ شک په ده کې (چې د الله تعالی له لوري نازل شوی دی).

تفسير: يعنې په دې خبره کې هيڅ شک او شبهه نشته چې قرآن د الله تعالی کلام دی، او ټول مضامين يې رښتيني او واقعي دي.

هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۲﴾

(دغه کتاب) لارښوونکی دی لپاره د پرهيزګارانو.

تفسير: له دغه ځايه دعظيم الشان قرآن تر آخره پورې د ﴿اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ﴾ ځواب دی، چې دبندګانو له خوا غوښتل شوی وو.

يعنې دغه کتاب هغو بندګانو ته لار ښيي، چې له الله تعالی څخه وېره لري، ځکه هغه څوک چې د الله تعالی څخه ويريږي هغه خامخا د ښو او بدو امورو «طاعت او معصيت» غوښتنه او پلټنه (لټون) کوي، او د چا په زړه کې چې د الله تعالی وېره نه وي، نو هغه به له طاعت سره څه علاقه او له معصيت څخې به څه انديښنه ولري؟.

الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۳﴾

هغه کسان چې ايمان (باور) لرونکي دي په غيب باندې او قائموي دوی (سم اداء کوي سره د ټولو حقوقو) لمونځ او ځينې له هغو شيانو چې ورکړي مونږ دوی ته صرفوي يې (د الله تعالی د رضا لپاره).

تفسير: يعنې هغه شيان چې دهغوی له عقولو او حواسو څخه پټ دي لکه وحدانيت، رسالت، حشر، نشر، قيامت، حساب، کتاب، ملائک، جنت، دوزخ، او نور دغه واړه د الله تعالی او دهغه درسول صلی الله عليه وسلم له ارشاد سره

سم حق او یقیني ګڼي، له دې څخه دا راښکاره شوه چې ددغو غايبو او پټو شيانو منکران د هدايت له فيضه محروم او بې برخې دي.

دلمانځه له اقامت څخه مطلب دادی چې هغه ټل دخپلو ټولو حقوقو او آدابو په مراعات کولو سره په ټاکلو (مقررو) وختونو کې اداء کړی شي.

دټولو عباداتو اصل درې شیان دي:

(۱) هغه امور چې دزړه سره تعلق او اړه لري.

(۲) هغه امور چې په بدن پورې متعلق او تړلي وي.

(۳) هغه امور چې په مال پورې مربوط وي.

په دې مبارك آيت كې دا درې واړه اصول په ترتيب سره ياد شوي دي.

وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ وَبِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾

او هغه کسان چې ايمان لري (دوی) په هغه (کتاب) چې نازل کړی شوی دی تاته او (په) هغو (کتابونو) چې نازل کړی شوي دي لـه مخه د تـا او په آخرت دوی يقين کوي (چې ضرور راتلونکی دی).

تفسير: په تير آيت کښې دهغو کسانو يادونه وه چه له شرك نه وتلي او مسلمانان شوي دي، لکه دمکی خلك، او په دغه آيت کښې هغه کسان ياد شوي دي چه أهل كتاب ؤ او په اسلام مشرف شوی دی لکه يهود او نصاری.

أُولَٰٓئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾

دغه (ستايل شوي) کسان (دي) په هدايت له (جانبه) درب خپل او دغه (ستايل شوي) کسان دي هم دوی په مراد رسېدلي، (يا) او دغه (ستايل شوي) کسان هم دوی په مراد رسېدلي دي.

تفسير: يعني دايماندارانو دغو دواړو ډلو ته چې پاس يادې شوي؛ په دنيا کې دوی ته هدايت ور په برخه شو، او په آخرت کې خپلو مرادونو ته رسيږي، له دې څخه معلوم شو؛ چې هر هغه څوك چې دايمان له نعمت او له ښو اعمالو څخه محروم او بې برخې دی؛ د هغه دنيا او آخرت دواړه بربادېږي اوس دمؤمنانو د دغو دوه ډلو له يادونې څخه وروسته د کافرانو دحالاتو يادونه کيږي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٦﴾

بېشکه هغه (خاص) کسان چې کافران شوي دي؛ برابر دي په دوی وېرول ستا دوی لره او نه وېرول ستا دوی لره؛ دوی ايمان نه راوړي، (يا دا خبره) که ووېروې ته هغوی يا که ته نه وېروې هغوی؛ ايمان نه راوړي.

تفسير: له دې کفارو څخه خاص هغه خلق مراد دي، چې هغوی ته کفر مقرر شوی دی، او دايمان له دولت څخه تل بې برخې دي (لکه أبو جهل، أبو لهب، او نور) که نه، نو ښکاره ده چې ډېر کسان له هغو خلقو څنې چې کافران وو په اسلام مشرف شوي دي، او وروسته له دې نه هم مسلمانيږي.

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ ؕ وَعَلٰۤى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ ؗ وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ۟

مهر لګولی دی الله پر زړونو د دوی او پر غوږونو د دوی، او پر سترګو د دوی (یوه څانته) پرده ده، او دی دوی لره عذاب ډېر لوی.

تفسیر: دهغوی پر زړنو مهر لګول شوی دی (یعنې دحق پر خبرو باندې نه پوهیږي) او پر غوږونو باندې یې مهر لګولی شوی دی (یعنې رښتیا خبرو ته په غور سره غوږونه نه ږدي) او پر سترګو باندې یې پرده ده (یعنې دحق لاره نه ویني) دکفارو بیان هم ختم شو، اوس په دغو وروستیو دریارلسو آیتونو کې دمنافقانو حالات راځي:

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ۟

او ځیني له خلقو هغه څوک دي چې وایي ایمان راوړی دی مونږ په الله او په ورځ وروستی (چې قیامت او د جزا وخت دی)، حال دا چې نه دي دوی مؤمنان.

تفسیر: یعني د زړه له کومې یې ایمان نه دی راوړی؛ چې هغه ته حقیقي ایمان ویلی شي، یواځې په ژبې سره دمسلمانانو دتېرایستلو لپاره دایمان اظهار کوي.

يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّاۤ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ۟ؕ

ټګي کوي دوی (په خپل ګمان) له الله سره او له هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی حال دا چې نه کوي ټګي دوی مګر له ځانو خپلو سره، حال دا چې دوی شعور نه لري، (او نه پوهیږي چې ضرر یې هم دوی ته رسیږي).

تفسیر: یعني ددوی دا تېر ایستل نه په الله تعالی باندې چلیږي چې عالم الغیب دی، او نه په مؤمنانو باندې څه اثر اچولی شي، ځکه هغوی دخپل رسول صلی الله علیه وسلم په ژبه او نورو دلائلو او قراینو په وسیله د دوی له فرېبکارۍ او دغابازۍ څخه خبریږي، بلکه ددې فرېب وبال او دهغې خرابي په حقیقت کې هم دوی ته بېرته ورګرځي، خو سره له دې دوی دخپل غفلت، ګناه، او جهالت له امله په غور سره ورته نه ګوري، او دهغې په نقصان او زیان نه پوهیږي.

«او دغه منافقان دخپل ځان په ضرر او نقصان ځکه نه پوهیږي چې»:

فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ ۙ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ

په زړونو ددوی کې مرض (دشک او نفاق) دی، نو زیات کړ دوی لره الله مرض.

تفسیر: دهغوی په زړونو کې دنفاق، او داسلام له دین څخه دنفرت او له مسلمانانو سره د کینې او عناد مرض لا له پخوا موجود وو، اوس دقرآنکریم د نزول، او داسلام دشوکت د ظهور، او دمسلمانانو دترقی، نصرت، او لوړتیا (اوچتوالی) له کبله د دوی هغه ناروغتیا لا سخته او درنه شوه.

وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ۬ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ۟

او (مقرر) دی دوي ته عذاب ډېر دردناک په سبب ددې چې وو دوی چې دروغ به یې ویل (په اظهار د ایمان سره).

تفسیر: له دې دروغو ویلو څخه هماغه داسلام په اړه ددروغو دعوی چې ویل به یې ﴿اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ﴾ مراد ده، چې پاس تېره شوه، یعنې ﴿عَذَابٌ اَلِيْمٌ﴾ په حقیقت کې د دوی دنفاق سزا ده، نه دمطلقو دروغ ویلو.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ قَالُوا إِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُونَ ﴿١١﴾

او کله چې وویلی شي دې منافقانو ته: فساد مه کوئ په ځمکه کې نو وايي دوی بېشکه هم دا خبره ده چې مونږ هم دغه اصلاح کوونکي يو.

**تفسير:** لنډه دا چې منافقانو به ډول ډول فسادونه خپرول (خورول):

(١) په نفساني خواهشونو کې غرق او دشرعي احکامو له منلو ځخه نفرت کوونکي او سستي کوونکي وو.

(٢) له مسلمانانو او کافرانو (دواړو) سره به يې تګ راتګ درلود (لرلو) دخپل قدر او منزلت د لوړتيا (ترقی) لپاره به يې دمسلمانانو خبرې کافرانو او دکافرانو به يې مسلمانانو ته رسولې، او يو بل ته به يې چغلي او شيطاني کوله.

(٣) له کافرانو سره يې په ډېر دار او مدار سره ګډون، ملاقات او معاملې کولې.

أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ وَلَٰكِنْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٢﴾

خبردار اوسئ! بېشکه دوی دي هم دوی فساد کوونکي مګر نه لري دوی شعور (پخپل فساد).

**تفسير:** هغه چارې چه منافقان يې دمصلحت او صلح په بهانې او پلمې سره کوي، هغه ټولې په حقيقت کې فساد او نفاق دی، مګر دوی نه پرې پوهيږي او شعور نه لري.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ

او کله چې وویلی شي دوئ ته چې ايمان راوړئ لکه چې ايمان راوړی دی نورو خلقو؛ نو وايي دوی: آيا ايمان راوړو مونږ لکه چې ايمان راوړی دی ناپوهانو؟!

**تفسير:** دا خبرې به يې په خپلو زړونو کې راګرځولې، يا به يې يو له بل سره کولې، يا به يې له هغو ضعيفو مسلمانانو سره يادولې، چې په کومه وجه له دوی سره په پټو خبرو کې شريک وو، دا کسان چې دمنافقانو په نظر «سفهاء» ورځي، په حقيقت کې داسې ريښتيني مسلمانان دي چې د الله تعالی په احکامو باندې خپل ځانونه جاروي، او دخلکو له مخالفت ځخه هيڅ انديښني او پروا نه کوي، ددوئ پر عکس منافقانو به له مسلمانانو او کافرانو دواړو سره ددنيوي ګټو په خاطر ظاهر داری کوله، او دآخرت فکر ورسره نه وو نو ځکه يې اسلامي شريعت ته غاړه ايښودل ناپوهي ګڼله.

أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِنْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٣﴾

خبردار اوسئ! بېشکه دوی دي هم دوي ناپوهان، مګر نه پوهيږي دوی (په ناپوهی خپلې).

**تفسير:** په حقيقت کې همدا منافقان ناپوهان دي، چې ددنيوي بې ثباته او فنا کيدونکې اغراضو او ګټو (فائدو) له امله يې آخرت تر شا کړی، او ورځخه بې پروا شوي دي، د فاني شي غوره کول او د باقي شي پرېښودل ځومره حماقت دی؟ خو منافقان تر دې درجې پورې ناپوهان دي چې په دې ښکاره حقيقت هم نه پوهيږي.

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ
مُسْتَهْزِئُونَ ﴿١٤﴾

او کله چې ملاقات وکړي (منافقان) له هغو کسانو سره چې ايمان يې راوړی دی، نو وايي دوی: ايمان مو راوړی دی، او کله چې يواځې شي له شيطانانو (مشرانو) خپلو سره نو وايي دوی: بېشکه مونږ له تاسو سره يو، بېشکه همدا خبره ده چې مونږ مسخرې کوونکي يو (په مؤمنانو پورې).

تفسير: له شياطينو (شريرانو) څخه يا هغه كفار مراد دي: چې ټولو خلقو ته به يې خپل كفر ښكاره كاوه، يا هغه منافقين مراد دي، چې دمنافقانو غټان او رئيسان ګڼل كېدل، يعنې منافقانو به خپلو مشرانو ته ويل چې: په كفر او نورو ديني معتقداتو كې مونږ بيخي له تاسو سره يو او له تاسو څخه هيڅكله نشو جلا (جدا) كېدى، او څمونږ دغه ظاهري موافقت چې له مسلمانانو سره يې كوو، داسې ونه ګڼئ چې ګوندې مونږ په رښتيا له هغو سره موافق يو، مونږ خو پر دوى ملنډې (پسخند) وهو، او مسخرې پرې كوو.

اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِىْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١٥﴾

الله ټوقې او مسخرې كوي په دوى پورې، او مهلت وركوي دوى ته په سركشۍ د دوي كې، حال دا چې دوى حيران دي (په خپل كار كې).

تفسير: څرنګه چې الله تعالى مؤمنانو ته فرمايلي دي چې له منافقانو سره هم دمسلمانانو په شان معامله وكړئ، او دهغوى دمال او ځان سره څه غرض ونكړئ، نو ځكه منافقانو دخپلې ناپوهي له امله داسې ګمان وكړ، چې دايمان له راوړلو څخه هغه فائدې چې مسلمانانو ته وررسيږي همغه ګردې مونږ ته هم د خولې په تشو خبرو رارسيږي، او داسلام په ظاهري اظهار سره بيخي ډاډه او هوسا (مطمئن) شوي يو، حال دا چې دا كار په پاى (آخر) كې منافقين په يوې سختې بلا اخته كوي، او دهغوى انجام ور خرابوي، نو اوس انصاف وكړئ، چې په حقيقت كې دا تمسخر پر مسلمانانو دى كه په منافقانو؟.

تنبيه: په دې آيت كې ﴿فِىْ طُغْيَانِهِمْ﴾ د ﴿وَيَمُدُّهُمْ﴾ له فعل سره متعلق دى، مګر په ځينو نورو ډيلوي ترجمو كې له ﴿يَعْمَهُوْنَ﴾ سره تړل شوى دى، چې له هغه څخه معنى خرابه او دمعتزله وو له مسلك سره موافقه او دسنيانو له اصولو او دعربو له استعماله بيخي مخالفه او غلطه ده، چې پوهان پرې ښه پوهيږي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ﴿١٦﴾

دا هغه كسان دي چې پېرودلې (اخيستلې، غوره كړې) يې ده ګمراهي په هدايت سره، نو هيڅ ګټه (فائده) ونه كړه سوداګري د دوى (بلكه زيان يې وكړ) او نه وو دوى لار موندونكي (حق ته).

تفسير: له تجارت څخه مراد هماغه د هدايت په ځاى د ګمراهي او ضلالت غوره كول دي، چې اوس يې ذكر وشو، يعنې منافقانو په ښكاره ډول ايمان ومانه، او په زړه كې يې كفر غوره كړ، چې دهغه له امله په آخرت كې خوار او په دنيا كې بې اعتباره شول.

مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿١٧﴾

مثال د منافقانو (په نفاق كې) په شان د مثال د هغه چا دى، چې بل كړى وي اور (په تپو تورو تيارو كې) نو كله چې روښانه كړي دغه (اور) هغه ځايونه چې چاپېر د هغه دي، نو مړه كړي الله رڼا د دوى او پرېږدي دوى په تيارو كې په دى حال كې چې هيڅ نه ويني.

تفسير: د منافقانو حال داسې دى، لكه چې څوك په يوه تپه (توره) تياره شپه كې د لارې د موندلو او له ضررناكو شيانو څخه د ځان په امن كولو له امله اور بل كړي، او په لوى بيابان كې يوه نرى لاره ځانته پيدا كړي، كله چې په رڼا كې لار

ورښکاره شي، نو الله تعالی هغه رڼا ترې مړه کړي، او هغه په همغه توره تیاره شپه او ډاګ میدان کې وچ کلک ولاړ وي، او هیڅ څیز الله نه ورښکاروي، همداسې منافقانو هم د مسلمانانو له وېرې د شهادت د کلمې له رڼا څخه غوښته چې کار واخلي، خو سم د لاسه یې لږ څه فایده (لکه د ځان او مال ساتنه) ترې واخیسته، چې ناڅاپه د شهادت د کلمې رڼا او نور منافع ګرد ورک شول، نو وروسته له مړ کېدلو څخه په دردناک عذاب اخته شول.

صُمٌّۢ بُكۡمٌ عُمۡیٌ فَهُمۡ لَا یَرۡجِعُونَ ﴿١٨﴾

(دوی) کاڼه دي، ګونګیان دي، ړانده دي، نو بېرته نه راګرځي دوی (له ګمراهۍ نه)

**تفسیر:** یعنې کاڼه دي چې رښتیا او حقه خبره نه شي اورېدی، ګونګیان دي دحق له اقراره او رښتیا ویلو، ړانده دي دحق له لیدلو، او دخپلې ګټې (فائدې) او تاوان له کتلو نه چې څوک کوڼ هم وي، ګونګی هم وي، نو هغه به په څه ډول په لار راشي؟ هو ! که یواځې ړوند وای، نو یا به یې چاته غږ کاوه، یا به یې د کوم سړي خبره اورېده، نو له دوی څخنې هیڅ هیله او توقع نه کیږي، چې له ګمراهی او بې لارتوب څخنې مخ واړوي او په سمه لار شي.

اَوۡ كَصَیِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِیۡهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعۡدٌ وَّبَرۡقٌ ۚ یَجۡعَلُوۡنَ اَصَابِعَهُمۡ فِیۡۤ اٰذَانِهِمۡ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الۡمَوۡتِ ؕ وَاللّٰهُ مُحِیۡطٌۢ بِالۡكٰفِرِیۡنَ ﴿١٩﴾

یا (مثال د دوی) په شان د صاحبانو د زورور غټ څاڅکي باران دی (چې اوري) له طرفه د آسمانه، چې وي په دې کې تیارې، تندر، او برېښنا، نو ننه باسي دوی ګوتې خپلې په غوږونو خپلو کې له امله د سخت آواز د تندرونو له وېرې د مرګه، او الله احاطه کوونکی دی په کافرانو (په علم او قدرت خپل).

**تفسیر:** دویم مثال د دغو منافقانو په شان د هغو کسانو دی، چې پر دوی له آسمانه یعنې له بره –د پاسه– نه په ډېر شدت سره باران اوري، او څو ډوله تیارې هم په هغه کې وي.

همداسې منافقان هم له یو لوري د خپلو دنیوي اغراضو او مصالحو له امله په یوه عجیبه پریشانۍ، وېره، او کشمکش کې اخته دي، او په خپلو چټي تدبیرونو سره دخپلو ځانونو ژغورل (ساتل) غواړي، مګر د الله تعالی قدرت له هر لوري کافران چار چاپېر نیولي او احاطه کړي یې دي، او دهغه له نیولو او له عذابه په هیڅ ډول نشي خلاصیدی.

یَكَادُ الۡبَرۡقُ یَخۡطَفُ اَبۡصَارَهُمۡ ؕ كُلَّمَاۤ اَضَآءَ لَهُمۡ مَّشَوۡا فِیۡهِ ۙ وَاِذَاۤ اَظۡلَمَ عَلَیۡهِمۡ قَامُوۡا ؕ وَلَوۡ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمۡعِهِمۡ وَاَبۡصَارِهِمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰی كُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ ﴿٢٠﴾

نژدې ده چې برېښنا وتښتوي (نور) د سترګو د دوی، کله چې رڼا کړي (برېښنا) دوی ته لاره؛ نو روان شي دوی پکې، او کله چې تیاره کړي په دوی نو ودرېږي، او که اراده کړې وای الله (د دوی د کوڼوالي او ړوندوالي) نو خامخا زائل کړي به یې وو (ظاهري قوت) د اورېدلو د دوی، او (ظاهري قوت) د لیدلو د دوی، بېشکه الله په هر څیز ښه قادر دی (چې ځینې یې کڼول او ړندول دي).

**تفسیر:** حاصل یې دا چې منافقان په خپل ضلالت او ظلماتي خیالاتو کې مبتلا دي، خو کله چې د اسلام د نور غلبې او د قوتناکو معجزو ظهور ته ګوري، او شرعي تهدید او تاکید اوري، نو لږ څه منتبه او په ښکاره ډول د «صراط مستقیم» په لوري متوجه کیږي، او هر کله چې څه دنیوي اذیت او مشقت په نظر ورشي، نو خپل کفر باندې ټینګیږي، لکه چې

د باران په شدت او تپه (توره) تياره کې د برېښنا له برېښېدلو سره په تللو باندې شروع کوي، او بيا بېرته وچ کلک درېږي، مګر څرنګه چې الله تعالى په هر شي باندې پوه او عليم دی، او هيڅ څيز د هغه له قدرت څخه د باندې نه دی، نو دوی ته له داسې هيلو او تدبيرونو څخه هيڅ يوه ګټه (فائده) نه ور رسيږي.

(فائده): ددې سورت له شروع څخه تر دې ځايه پورې يې ددريو ډلو ذکر وفرمايه، لمړۍ: دمؤمنانو، دويمه: د کافرانو چې دهغوی پر زړونو باندې داسې مهر لګول شوی دی چې هيڅکله به ايمان رانه وړي، دريمه: دمنافقانو، چې په ظاهر لکه مسلمانان ښکاري، مګر دهغوی زړونه په هيڅ يو لوري نه دي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمُ ٱلَّذِي خَلَقَكُمۡ وَٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴿٢١﴾ ٱلَّذِي جَعَلَ لَكُمُ ٱلۡأَرۡضَ فِرَٰشٗا وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءٗ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَخۡرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزۡقٗا لَّكُمۡۖ فَلَا تَجۡعَلُواْ لِلَّهِ أَندَادٗا وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ﴿٢٢﴾

ای خلقو ! عبادت وکړئ درب خپل هغه (رب چې) پيدا کړي يې يئ تاسې، او (پيدا کړي يې دي) هغه کسان چې وو پخوا له تاسې څخه؛ لپاره ددې چې تاسې ځان وساتئ (له عذابه د الله)، هغه (رب) چې ګرځولې يې ده تاسو ته ځمکه فرش، او (ګرځولی يې دی) آسمان چت، او نازلې کړي يې دي له (طرفه) د آسمانه اوبه، پس راوېې ايستې په دې (اوبو) سره له هر ډول ميوو څخه روزي تاسې ته، نو مه ګرځوئ له الله تعالى سره شريکان حال دا چې تاسې پوهيږئ (چې الله شريک نه لري).

وَإِن كُنتُمۡ فِي رَيۡبٖ مِّمَّا نَزَّلۡنَا عَلَىٰ عَبۡدِنَا فَأۡتُواْ بِسُورَةٖ مِّن مِّثۡلِهِۦ

او که چېرې يئ تاسې په شک کې له هغه قرآنه چې ټوټه ټوټه نازل کړی دی مونږ په بنده خپل (محمد باندې) نو راوړئ تاسې يو سورت په شان دده !

تفسير: ديوه کلام په نسبت شبهه يا له دې جهته کېدای شي چې څه خلل او ريب په کې وي، نو دهغه دفعه يې په ﴿ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ﴾ سره وفرمايله، يا يې دا صورت کيدای شي چې د چا په زړه کې دپوهې له لږوالي يا د عناد د زياتوالي له امله څه شک او شبهه پيدا کيږي، نو څرنګه چې دا صورت ممکن بلکه موجود وو، نو ددې د لرې کولو عمده او آسان صورت يې بيان وفرمايه، چې که تاسې ددې کلام په نسبت داسې خيال لرئ چې د بشر کلام دی؛ نو تاسې هم د دی قرآن د يوه سورت د درې آيتونو په اندازه همداسې فصيح او بليغ يو سورت جوړ او ورسره يې مقابل کړئ، کله چې تاسې سره لـه ډېر فصاحت او بلاغت، د پاک قـرآن د يوه وړوکي سورت له مقابلې څخه عاجز يئ، نو باور وکړئ چې دا د الله تعالى کلام دی، او د هيڅ کوم بنده خبره نه ده، په دی آيت کې د محمد صلى الله عليه وسلم نبوت لا ښه څرګند او مدلل شو.

وَٱدۡعُواْ شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴿٢٣﴾

او راوبولئ (ای مشرکانو !) مددګاران خپل بې له الله څخه که يئ تاسې رښتيا ويونکي (په دې دعوی کې چې دا د انسان کلام دی).

تفسير: يعنې که تاسې په دې دعوی کې رښتيني يئ چې دا د بنده خبره ده، نو هومره پوهان، عالمان، شاعران، فصحاء، او بلغاء چې موجود دي پرته له الله تعالى؛ له ټولو څخه مدد او کومک وغواړئ، او معاونت ترې واخلئ ! او په دې سره يې ولمسوئ چې ټول سره کيني او يو لنډ سورت دقرآن دڅو آيتونو په شان جوړ کړئ ! يا يې دا مطلب دی چې

له الله تعالی نه په غیر ستاسې هومره معبودان چې دي؛ له ټولو څخه په ډېره تضرع او زاری او په دعاګانو سره غوښتنه وکړئ ! چې په دې مشکل کې له تاسو سره مدد وکړي، او څه آسانتیا در ورسوي.

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا وَلَن تَفْعَلُوا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ لِلْكَافِرِينَ ﴿٢٤﴾

پس که ونه کړی شو تاسو (دا کار) او له سره به یې ونه کړی شئ، پس وساتئ تاسو (ځانونه) له هغه اوره چې خس (خاشاک) د هغه بنیادمان او تیږي (ګټې) دي، چې تیار کړی شوی دی (دا اور) لپاره د کافرانو.

وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوا هَٰذَا الَّذِي رُزِقْنَا مِن قَبْلُ ۖ وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا ۖ

او زېری ورکړه (ای محمده) هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی (په ټولو مؤمن به شیانو) او کړي یې دي ښه (عملونه) په دې چې بېشکه دوی ته جنتونه دي چې بهيږي لاندې (تر مانیو او ونو) دهغو ویالې، هر کله چې روزي ورکړه شي دغو (جنتیانو) ته له جنتو څخه څه میوه لپاره دخوړلو؛ نو وایي دا (جنتیان): دا همغسې میوه ده چې راکړای شوې وه مونږ ته پخوا له دې نه، او را به وړه شي دوی ته میوه همرنګه (او په خوند کې سره بېله).

تفسیر: دجنت مېوې به د دنیا له مېوو سره مشابه وي، چې په شکل او صورت کې به عینا بیخي همغسې ښکاري، مګر په خوند، مزه، رائحه، خوږوالي، لطافت، او نزاکت کې به ډېر زیات فرق سره لري، او د دې دواړو په مېنځ کې به د ځمکې او آسمان توپیر (فرق) وي.

وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٥﴾

او وي به دوی لپاره په دغو (جنتونو) کې ښځې ښې پاکې ستره، او دوی به وي په دغو (جنتونو) کې همیشه.

تفسیر: د جنت ښځې به له ظاهري او باطني نجاساتو (او رذیله ؤ اخلاقو) څخه ټولې پاکې، صافې وي.

فائده: تر دې ځایه پورې یې ددرې شیانو ذکر وفرمایه، چې په هغو پوهیدل ضروري وو:

اول: «مبدأ» یعني چې مونږ له کومه راغلي یو؟ او تر دې پخوا څه شی وو؟

دویم: «معیشت» چې څه خورو، او چېرې اوسو؟

دریم: «معاد» چې ځمونږ پای او انجام به څه کیږي؟

إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَن يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ۚ

بېشکه الله حیا نکوي (نه شرمیږي ددې خبرې نه) چې بیان کړي یو مثال (له مثالونو څخه) په میاشي سره یا چې پورته وي ترې.

تفسیر: کفارو وویل چې: «مونږ په بل دلیل سره ددې خبرې دشهادت وړاندې کوو، چې دا د الله کلام نه بلکه د بنده وینا ده، او هغه دا دی، چې یو لوی عظیم الشان سړی تل پخپلو خبرو اترو کې د ذلیلو او حقیرو شیانو له یادولو څخه ځان ساتي، او له سره ژبه نه پرې خوځوي، نو حق تعالی چې له ټولو لویانو څخه اعلی، اعظم، او اکبر دی، څرنګه په

خپل پاک کلام کې د میاشي، یا له هغه څنې د کومې لویې خوځندې (حشرات الأرض) لکه مچ او غنې (جولاګۍ) مثال بیانوي، ځکه چې له (مثال) نه د (ممثل له) توضیح او تفصیل مطلوب دی، او په هغه کې د حقارت او عظمت څه خبره او مباحثه نه وي، او دا مطلوب به هلته حاصلیږي چې د (مثال) او د (ممثل له) په منځ کې پوره مطابقت وي، که (ممثل له) حقیر وي، نو ښایي چې د هغه (مثال) هم حقیر وي، که نه هغه (تمثیل) بېکاره ګڼل کیږي» د ﴿فَمَا فَوْقَهَا﴾ معنی داسې هم کیدی شي، چې له میاشي څنې په حقارت او صغارت کې زیات وي، لکه چې په ځینو احادیثو کې ددنیا مثال دمیاشي د وزر سره کړی شوی دی.

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۖ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا ۚ

پس هر هغه کسان چې مؤمنان دي، پس پوهیږي (په یقین سره) چې بېشکه دا مثال حق دی له ربه د دوی څخه، او هر هغه کسان چې کافران شوي دي نو وایي: (له ډېرې ناپوهۍ او عناد نه) چې د څه څیز اراده کړې ده الله په دې مثال سره (داسې کړی ده الله چې:) ګمراه کوي په دې مثال سره ډېر خلق، او سمه لار ښیي (دحق) په دې سره ډېرو خلقو ته.

تفسیر: یعنې مؤمنان داسې مثالونه حق او مفید ګڼي، او کافران د حقارت په ډول وایي چې: «له داسې حقیرو او سپکو مثالونو څنې الله تعالی څه مطلب او اراده لري؟» ځواب ورکړی شوی دی چې: دغه کلام له سره تر پایه پورې هدایت دی، خو د ده نه اوربدلو څخه ډېر خلق د ګمراهۍ په کنده کې لویږي، او ډېر خلق د هغه په مرسته د هدایت په سمه لاره درومي، یعنې دې څخه دحق د طرفدارانو او د باطل د هوا خواهانو پوره تمیز بیلوالی او جلاوالی (جداوالې) مقصود دی، چې هغه خورا مفید او ضروري شی دی.

وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ ﴿٢٦﴾ الَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ مِن بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٢٧﴾

او نه ګمراه کوي (الله) په دې مثال سره مګر فاسقان، هغه کسان چې ماتوي دوی عهد د الله وروسته د محکموالي د هغه عهد او پرې کوي هغه چې حکم کړی دی الله په هغه سره، چې پیوند دې کړی شي، او فساد کوي دوی په ځمکه کې، او دغه کسان هم دوی دي زیان کاران (په دنیا او عقبی کې).

تفسیر: د ﴿مَا أَمَرَ اللَّهُ﴾ قطع لکه قطع الرحم، له انبیاوو، علماوو، واعظانو، مؤمنانو، لمونځو، او نورو خیریه وو امورو نه مخ اړول چې د الله تعالی د رضا په خلاف دی، له فساد نه مراد دا دی چې: خلق به یې له ایمان څنې زړه توري کول، او د هغه نفرت او کرکه به یې د هغوی په زړونو کې ور اچوله، او د اسلام مخالفان به یې په دې باندې تیزول چې له مسلمانانو سره مقاتله وکړي، او د مؤمنانو مقاتلې ته ملا وتړي، او د لویو اصحابو او د امت د صلحاوو عیوب ولټوي، یا یې پرې وتړي، او بیا یې مشهور کړي، چې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) او د محمدي دین بې احترامي د خلقو په زړونو کې کیني، او راز راز رسوم او بدعتونه به یې خپرول (خورول)، او داسلام په مخالفت کې به یې زور لګاوه.

مطلب دا دی چې د دې نا مناسبو حرکتونو له امله خپلو ځانونو ته زیان رسوي، چې له هغو څنې نه د اسلام توهین او نه د امت د صلحاوو څه تحقیر کیدای شي.

كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۲۸﴾

څرنګه کافران کيږئ په الله باندې، حال دا چې وئ تاسې مړه، بيا (الله) ژوندي کړی تاسې (دروح په درکولو سره) بيا به (الله) مړه کړي تاسې، بيا به (الله) ژوندي کړي تاسې (په بعث سره) بيا به خاص هم ده ته وګرځول شئ (دخپلو اعمالو د جزا لپاره).

تفسير: يعنې په اوله کې تاسې بې ځانه اجسام وئ، چې حس او حرکت در کې نه وو، لومړی عناصر وئ، وروسته د مور او پلار خواړه او غـذا شوئ، او بيا نطفه او ړيسې کلکه وينه او بيا يوه ټوټه غوښه شوئ، له لومړنيو حالاتو څخه وروسته په تاسې کې روح (سا) پو کړی شو، چې د هغه له امله لومړئ دمور په رحم کې او بيا په دنيا کې ژوند کوئ، کله چې په دنيا کې د مرګ وخت راشي، او مړه شئ بيا به په قيامت کې ژوندي کيږئ چې حساب ورکړئ او خپلې عملنامې واخلئ، يعنې له قبرونو څخه به ووځئ، او د الله تعالی په حضور کې به د حساب او کتاب لپاره ودرولی شئ، نو اوس تاسې خپله انصاف وکړئ، هر کله چې تاسې له اوله تر آخره پورې د الله تعالی د احساناتو او فائدو ګرو يئ، او په هر حالت او حاجت کې ورته محتاج يئ، او هم ده ته اميد او هيله لرئ، نو په سر د هغه کفر غوره کول او د پاک الله جل جلاله نافرمانی ته ملا تړل څومره د تعجب، افسوس، او حيرانی خبره ده.

هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الْاَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوٰى اِلَى السَّمَاءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿۲۹﴾

الله هغه ذات دی چې پيدا کـړی يـې دي تاسې ته هغه شيان چې په ځمکه کې دي ټول، بيا يې قصد وکړ آسمان ته (دپيدا کولو) نو برابر يې کړل دوی اووه آسمانونه، او دې په هر څه باندې ښه عالم دی.

تفسير: په دې آيت کې دبل نعمت بيان وفرمايه، يعنې الله تعالی تاسې پيدا کړي يئ او ستاسې د بقاء او ګټې لپاره يې په ځمکه کې هر ډول شيان خورا زيات پيدا کړل، لکه دخوړلو، څکلو، او آغوستلو شيان، هو، دهر شي لپاره يې جلا جلا سامانونه او وسيلې، او وروسته له هغه يې متعدد آسمانونه پيدا کړل، چې په هغو کې تاسې ته راز راز منافع او ګټې (نفعې) شته دي.

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّي جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيفَةً قَالُوٓا اَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ

او (ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وويل پرودګار ستا پرښتو ته چې بېشکه زه پيداکوونکی يم په ځمکه کې د يوه خليفه، نو وويل پرښتو: آيا پيدا کوې ته په ځمکه کې هغه څوک چې فساد به کوي په دې ځمکه کې او تويوي به (په ناحقه سره) وينې، حال دا چې مونږ تسبيح وايو سره د ثنا ستا او نسبت د پاکی کوو تاته.

تفسير: دا خبره چې پرښتو ته د بنيادمانو احوال څرنګه څرګند شوي وو؟ په دې کې ډېر احتمالات شته، يا به يې په پيريانو باندې قياس کړی وي، يا به الله تعالی پوهولې وي، يا به پوهيدلې وي چې خليفه ته خو هلته ضرورت پيښيږي، چې ظلم، فساد، او تجاوز موجود وي.

قَالَ اِنِّیۡۤ اَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۳۰﴾

وویل (الله): بېشکه زه پوهیږم په هغو اسرارو چې تاسې پرې نه پوهیږئ.

وَعَلَّمَ اٰدَمَ الۡاَسۡمَآءَ کُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمۡ عَلَی الۡمَلٰٓئِکَةِ فَقَالَ اَنۡۢبِـُٔوۡنِیۡ بِاَسۡمَآءِ هٰۤؤُلَآءِ اِنۡ کُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ ﴿۳۱﴾
قَالُوۡا سُبۡحٰنَکَ لَا عِلۡمَ لَنَاۤ اِلَّا مَا عَلَّمۡتَنَا ؕ اِنَّکَ اَنۡتَ الۡعَلِیۡمُ الۡحَکِیۡمُ ﴿۳۲﴾

او وښودل (الله) آدم ته نومونه ټول (دپاسنیو او ځمکنیو شیانو) بیا یې وروړاندې کړل هغه ټول شیان پرښتو ته، نو ویې ویل: خبر راکړئ تاسې ما ته په نومونو ددې شیانو سره که یئ تاسې رښتیا ویونکې (پخپلې دغې وینا کې) وویل پرښتو: نسبت دپاکۍ کوو تاته (له ټولو عیبونو او اعتراضونو) نشته هیڅ علم مونږ لره مګر په هغه شي چې ښودلی دی تا مونږ ته، بېشکه ته هم دا ته ښه عالم او ښه د حکمت خاوند یې.

**تفسیر:** لنډه یې دا چې حق تعالی آدم علیه السلام ته د هر شي نوم او د هغه حقیقت او خاصیت، ګټه (فائده) او تاوان وروښود، وروسته له دې چې ددې لپاره چې د هغه خاص حکمت او اساسي مصلحت پرښتو ته څرګند شي، ددغو پاسنیو یاد شوو شیانو پوښتنه یې له پرښتو څخه وفرمایله، مګر هغوی په ځواب کې پخپل عجز او قصور اعتراف وکړ، او ښې وپوهېدلې چې بې له دې عمومي معلوماتو څخه هیڅوک پر ځمکه خلافت نشي کولای.

قَالَ یٰۤاٰدَمُ اَنۡۢبِئۡهُمۡ بِاَسۡمَآئِهِمۡ ۚ فَلَمَّاۤ اَنۡۢبَاَهُمۡ بِاَسۡمَآئِهِمۡ ۙ قَالَ اَلَمۡ اَقُلۡ لَّکُمۡ اِنِّیۡۤ اَعۡلَمُ غَیۡبَ السَّمٰوٰتِ
وَالۡاَرۡضِ ۙ وَاَعۡلَمُ مَا تُبۡدُوۡنَ وَمَا کُنۡتُمۡ تَکۡتُمُوۡنَ ﴿۳۳﴾

وویل (الله) ای آدمه ! خبر کړه دوی په نومونو ددې شیانو، نو کله چې آدم خبر ورکړ دوی ته په نومونو دهغو شیانو، وویل (الله): آیا نه وو ویلي ما تاسو ته، چې بېشکه زه پوهیږم په پټو شیانو د آسمانونو او د ځمکې او پوهیږم پر هغو شیانو چې ښکاره کوئ یې تاسې (په ژبه) او په هغو شیانو چې یئ تاسې چې پټوئ یې (په زړونو کې).

**تفسیر:** وروسته له دې د آدم علیه السلام څخه د عالم د ټولو شیانو په نسبت سوال وشو، نو هغه ژر تر ژره هغه ټول ملائکو ته وربیان او ټولې پرښتې یې داسې متعجبې او حیرانې کړې، چې دده په علمي احاطه یې تحسین او آفرین وویل، نو دلته الله تعالی ملائکو ته وفرمایل: «آیا تاسو ته مو نه وو ویلي، چې بېشکه زه ښه پوهیږم په پټو شیانو د آسمانونو او دځمکې، او ښه خبر یم په هغه شیانو چې یې څرګندوئ، او پټ یې ساتئ په خپلو زړونو کې».

فائده: له دې څخه پر عبادت باندې دعلم فضیلت ثابت شو، وګورئ چې په عبادت کې پرښتې دې حد ته رسېدلې وې، چې معصومې دي، مګر څرنګه چې په علم کې د انسان څخه کمې دي، نو ځکه یې د خلافت مرتبه انسان ته داسې ورکړه چې پرښتې هم ورته تسلیمې شوې.

وَاِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلٰٓئِکَةِ اسۡجُدُوۡا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوۡۤا اِلَّاۤ اِبۡلِیۡسَ ؕ اَبٰی وَاسۡتَکۡبَرَ ٭۫ وَکَانَ مِنَ الۡکٰفِرِیۡنَ ﴿۳۴﴾

او (یاد کړه ای محمده !) کله چې وویل مونږ پرښتو ته چې: سجده وکړئ آدم ته (د تحیې) پس سجده وکړه دوی (ټولو) مګر (سجده ونکړه) ابلیس، منع یې راوړه (له سجدې نه) او لویي یې وکړه او وو دی (لا له پخوا څخه په علم د الله کې) له کافرانو څخه.

تفسیر: کله چې د آدم علیه السلام خلافت مسلم شو، نو پرښتو او پیریانو ته امر وشو چې د آدم علیه السلام په لوري د تحیې (تعظیم) سجده وکړئ او هغه د خپلې سجدې قبله وګرځوئ، ددې امر دمنلو له امله ټولې پرښتې په سجده ولوېدې، مګر یوازې (ابلیس) له سجدې کولو څخه سر وغړاوه، چې په اصل کې له پیریانو څخه وو.

دالله تعالی په علم کې له اوله دی کافر وو، مګر نورو ته اوس د هغه عصیان او کفر ورښکاره شو، یا یې داسې وبوله چې اوس کافر شو، ځکه چې د پاک الله امر یې د تکبر او لویې له امله ونه مانه، او دالله جل جلاله حکم یې له مصلحت او حکمت څخه مخالف او د ننګ او عار موجب وګانه، او یوازې له دې جهته کافر نه شو چې سجده یې ونکړه.

وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿۳۵﴾

او وویل مونږ ای آدمه ! واوسیږه ! ته او ښځه ستا په جنت کې، او خورئ ! له میوو د جنته (څه چې مو زړه غواړي) پرېمانه هر چېرته مو چې خوښه وي، او مه نږدې کیږئ دې ونې ته (دمېوې خوړولو لپاره) (که نږدې شوئ) نو شئ به له ظالمانو څخه.

فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ ۖ وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿۳۶﴾

پس وښویول دوی دواړو لره شیطان له جنته (د ونې نږدېوالي په واسطه) نو وېې ایستل دواړه له هغه جنت څخه چې وو دوی په هغه کې، او وویل مونږ چې کوز شئ (له جنته ځمکې ته) حال دا چې ځینې ستاسې به له ځینې نورو سره دښمنان وي، او شته تاسې ته په ځمکه کې ځای دهستوګنې او اسباب د ګټې (فائدې) اخستلو تر یوه وخته پورې (چې اجل قیامت دی).

تفسیر: یعني په دنیا کې به تل نه اوسیږئ، بلکه تر یوې ټاکلې مودې پورې به هلته اوسیږئ، او د هغه ځای له شیانو څخه به ګټه (فائده) اخلئ، بیا به له ما سره مخامخ کیږئ، او هغه ټاکلی وخت هر چا لره د مړینې وخت دی، او ټولو مخلوقاتو ته په مجموعي ډول دقیامت ورځ ده.

فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِنْ رَبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۳۷﴾

پس زده کړل آدم له پروردګار خپل څخه څو کلمې پس رجوع وکړه (الله) په هغه باندې (په رحمت سره) بېشکه هم دې دی ښه توبه قبلوونکې ښه مهرباني کوونکی.

تفسیر: کله چې آدم علیه السلام د الله تعالی دا عتاب واورېد، او له جنت نه ووت، نو د ندامت او پښېماني په حالت کې په ژړا او واویلا او په زاري مشغول شو، په دې وخت کې حق تعالی په خپل فضل او مرحمت سره ده ته څو کلمې د القاء او الهام په توګه ورزده کړې، چې دهغو په لوستلو د ده توبه قبوله شوه، هغه کلمې دادي: ﴿رَبَّنَا ظَلَمْنَا أَنْفُسَنَا وَإِنْ لَمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ﴾ د (الأعراف سورت لمړی رکوع، ۲۳ آیت).

قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا ۖ

(بیا) وویل مونږ چې: کوز شئ له جنته ټول.

تفسیر: مطلب دا دی چې حق تعالی د آدم علیه السلام توبه قبوله کړه خوجنت ته یې سمدلاسه ورتګ امر ورنکړ، بلکه امر یې وکړ چې په دنیا کې هستوګنه وکړي، ځکه چې دهغه حکمت او مصلحت اقتضاء همداسې وه، ښکاره خبره

ده چې دې يې د ځمکې لپاره «خليفه» ټاکلی وو، نه د جنت لپاره، او الله تعالی همداسې فرمايلي دي: هر هغه څوك چې زما تابع او منونکی وي نو هغه ته به د دنيا هستوګنه هيڅ ضرر نه رسوي، بلکه ګټه ورته لري، هو ! نافرمانو خلقو ته دوزخ دی، د دغو دوه وو متضادو عنصرونو د بيلوالي او امتحان لپاره همدا دنيا مناسب ځای دی.

فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٣٨﴾

پس که راغی تاسې ته له ما ځنې کوم هدايت پس هر څوك چې پيروي وکړي د هدايت زما پس نه به وي هيڅ قسم وېره پر دوی باندې او نه به دوی (هيچېرې) خپه کيږي (او جنت ته به ځي).

تفسير: هغه صدمه او اندېښنه چې چاته د کوم مصيبت له پېښيدو څخه پخوا پېښيږي هغې ته خوف وايي، او هغه غم او خپګان چې انسان ته له مصيبته وروسته رسيږي، هغه ته حزن وايي، مثلا هغه کيفيت ته چې د يوه مريض د مړ کېدلو له تصور نه چاته ورسيږي خوف دی، او هغه کيفيت ته چې د هغه له مړ کېدلو څخه وروسته پيدا کيږي حزن وايې، مثلا د هغه خوف او حزن نفي چه په دې آيت کې شوې ده، که له هغه څخه دنيوي (خوف) او (حزن) مراد شي، نو د هغه معنی به داسې کيږي: هغه کسان چې زما له هدايت سره سم تګ کوي نو دوی ته هيڅ ددې اندېښنې ځای نشته چې دا به حق هدايت نه وي، او د شيطان له لوري به فرېب او مغالطه وي، او نه به دوی د دې له امله غمجن وي، چې اوس خو د دوی له پلار څخه جنت اخيستی شوی دی، ځکه د هدايت لار مونډونکي ته ژر تر ژره جنت ور رسيږي او که اخروي «حزن» او «خوف» مراد وي، نو به يې مطلب داسې وي چې په قيامت کې به د هدايت خاوندانو ته نه (خوف) وي، او نه (حزن) مګر د (حزن) په نشتوالي کې خو هيڅ دشك او شبهې ځای نشته، ځکه د (خوف) له نفي څخه دا اندېښنه په زړه کې رالويږي چې دجزا په ورځ کې تر انبياوو عليهم السلام پورې به هم په (خوف) او وېره کې وي، او هيڅ څوك به بې وېرې نه وي خبره داده چې (خوف) په دوه ډوله دی: کله د خوف باعث او مرجع په وېريدونکي کې ليدل کيږي لکه چې پاچاهي مجرم له پاچا ځنې وېريږي، نو د (خوف) موجب جرم دی چې نسبت يې ورته کيږي، او کله د خوف منشأ (مخوف منه) وي، يعنې لکه چې يو بې ګناه شخص چې د بادشاه يا د زمري له هيبت څخه وېريږي، نو د دې وېرې سبب دا نه دی چې ګواکې دغه شخص د پاچا يا د زمري په مقابل کې کومه ګناه کړيده، بلکه د پاچا قهر او جلال، يا د زمري سبعيت، غضب او هيبت، ددغه خوف موجب ګرځېدلی دی، چې منشأ يې د پاچا خلاف يا د زمري هيبت دی، نو په دې آيت کې يې لومړی ډول (خوف) نفي کړ نه دوهم ډول، دا شبهه خو هلته وارد بدله چې د ﴿فَلَا خَوْفٌ﴾ په ځای يې (لا خوف فيهم) يا ﴿لا يخافون﴾ فرمايلي وی.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٣٩﴾ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَوْفُوا بِعَهْدِي أُوفِ بِعَهْدِكُمْ وَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴿٤٠﴾

او هغه کسان چې کافران شوي دي او دروغ ګڼي آياتونه ځمونږ هم دغه کسان صاحبان د اور (دوزخ) دي، هم دوی به په هغه (اور د دوزخ) کې همېشه وي. ای بني اسرائيلو ! (اولاد ديعقوبه !) ياد کړئ نعمت زما هغه چې انعام مې کړی دی پر تاسې او وفا وکړئ په عهد زما (په متابعت د نبي) چې زه هم وفا وکړم په عهد ستاسې (په دخول د جنت) او خاص له ما نه پس وويرېږئ (له مناهيو ځان وساتئ، او د دنيوي منافعو له لاس وتلو څخه مه وېرېږئ !).

تفسير: اول ﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا﴾ عام خطاب وو، او په هغه کې د هغو نعمتونو ذکر وو، چې ګردو بنيادمانو ته په عمومي ډول ورکړی شوی وو، مثلا د ځمکې، آسمان، او نورو ګردو شيانو پيدايښت، بيا د آدم عليه السلام د پيدايښت، او د

هغه د خلافت او جنت ته د ادخال او نورو يادونه وشوه، اوس له بنيادمانو څخه خاص بني اسرائيلو ته خطاب کړی شوی دی، او هغه خاص نعمتونه يې ور په ياد کړي دي چې وخت په وخت او پشت په پشت يې پر دوی انعام کړی دی، او هغه ناشکري چې دوی د نعمتونو په مقابل کې کړې ده، د هغو ګردو يادونه په مفصل ډول سره کولی شي، ځکه چه بنی اسرائيل دبنيادمانو په ټولو فرقو کې ممتاز وو، د علم خاوندان د آسماني کتابونو، انبياوو، او دنبوت پيژوندونکي او لرونکي وو، او دګردو عربو سترګې د هغوی په لور وې چې آيا بني اسرائيل زمونږ د پيغمبر محمد صلی الله عليه وسلم د رسالت تصديق کوي که نه؟ نو له دې امله يې د انعاماتو او خرابيو يادونه په تفصيل سره فرمايلې ده چې دوی ښه پرې متأثر شي او د خجالتې په سبب ايمان راوړي، او که نه نور خلق خو به په دې وسيله د دوی له دې حرکاتو څخه واقف شي، او بيا به د هغوی په نورو خبرو باور نه کوي.

اسرائيل د يعقوب عليه السلام نوم دی چې معنی يې بنده د الله يعنی عبد الله ده.

﴿اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ﴾ الآية - ياد کړئ ای بني اسرائيلو ! نعمت زما هغه چې انعام مې کړی دی پر تاسې، چې په زرګونو انبياء يې په دوی کې مبعوث کړي دي، (تورات) او نور کتابونه يې پر دوی نازل فرمايلي دي، دوی يې د فرعون له عذابه ژغورلي دي، د دوی تصرف او تسلط يې د شام پر هيواد قائم کړی دی، پر دوی يې د (من) او (سلوی) خواړه نازل کړي دي، له يوې تيرې څخه يې د اوبو دولس چينې دوی ته بهولي دي، او هسې نعمتونه او د عاداتو خوارق يې ور په برخه کړي دي چې د نورو خلقو په برخه شوي نه دي.

﴿وَأَوْفُوا بِعَهْدِي﴾ الآية - او وفا وکړئ په عهد زما په متابعت د نبي چې زه هم وفا وکړم په عهد ستاسې په دخول د جنت.

په (تورات) کې هسې امر شوی وو، چې تاسې د (تورات) پر احکامو ټينګ اوسئ ! او په هر نبي عليه السلام باندې چې در ورېږي ليږم ايمان راوړئ ! او له هغه سره ملګرتيا وکړئ ! چې د (شام) هيواد ستاسو په قبضه کې پاتې شي، بني اسرائيلو دا ګردې خبرې منلې وې، مګر بيا دوی په خپلو دغو وعدو ونه دريدل، په بد نيتی يې پيل وکړ، په رشوتونو باندې يې خبرې او مسئلې اړولې او غلطې يې ورښوولې - او حق به يې پټاوه- وروسته له دې چې خپل رياست يې قائم کړ، د انبياوو له اطاعت څخه يې سر وغړاوه، بلکه د ځينو په وژلو يې لاس هم پورې کړ، د (تورات) په هر ځای کې چې د محمد صلی الله عليه وسلم صفتونه او ستاينې وې هغه يې بدلې کړې، نو ددې شيانو له امله ګمراهان شول.

وَآمِنُوا بِمَا أَنزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُونُوا أَوَّلَ كَافِرٍ بِهِ ۖ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَإِيَّايَ فَاتَّقُونِ ﴿٤١﴾ وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤٢﴾

او ايمان راوړئ ! په هغه کتاب چې نازل کړی دی ما حال دا چې (تصديق کوونکی دی د هغه کتاب) چې تاسې سره دی، او مه کېږئ ! اول کافر (نه منونکي) په دې (قرآن) باندې او مه پېرئ (مه آخلئ) په آيتونو زما قيمت لږ، او خاص له ما نه وو پر ېږئ ! (دا کار مه کوئ !) او مه ګډوئ حق له باطل سره (خپل دروغ له رښتيا د «تورات» سره) او (مه) پټوئ ! حق حال دا چې تاسې پوهېږئ (په دې خلط او پټولو سره).

**تفسير:** په (تورات) کې ليکل شوي وو، هغه پيغمبر چې د (تورات) تصديق وکړي هغه صادق دی، نو تاسې يې ومنئ او که (تورات) ونه مني دروغ وايي.

**(تنبيه):** قرآني احکام په اوامرو، نواهيو او د انبياوو په عقايدو، سوانحو، اخبارونو، او د آخرت په احوالو، او نورو شيانو کې له (تورات) او نورو پخوانيو کتابونو سره سم او موافق دی، هو ! د هغوی ځينې اوامر او نواهي منسوخ شوي دي،

مګر هغه د تصديق ځنې مخالف نه دي، د تصديق مخالف تکذيب دی، او د الله جل جلاله د کتابونو تکذيب بيخي کفر دی، ځينې قرآني آيتونه هم منسوخ شوي دي، مګر (نعوذ بالله) هغه ته څوک تکذيب نه وايې، ځکه چې نسخ په انشاء او تکذيب په اخبار کې راځي.

﴿وَلَا تَكُونُوٓا۟ أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ﴾ الآية — او مه کيږئ اول کافر نه منونکي په دې قرآن باندې، يعني تاسې سره له پوهې لومړني تکذيب کوونکي مه شئ ! چې تر قيامته پورې به د منکرانو ګناه ستاسو په غاړه کې لويږي، که د مکي مشرکان تکذيب او انکار کوي، خو هغه د دوی له جهل او بېخبری ځنې دی، او په قصد سره نه دی، نو سره له پوهې اول منکران تاسو يئ ! او دا کفر له لومړني کفر څخه ډېر سخت دی.

وَأَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱرْكَعُوا۟ مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ۝٤٣

او سم قائموئ (په ښه ترتيب سره ادا کوئ) لمونځ ! او ورکوئ زکات ! او رکوع وکړئ ! سره له رکوع کوونکو (لمونځ کوونکو مسلمانانو).

تفسير: يعنې په جماعت سره لمونځ وکړي، خلاصه دا چه په ټولو أصولو کښې دآخر الزمان نبی صلی الله عليه وسلم پيروي وکړئ او لمونځ هم دهغه په طريقه أدا کړئ.

أَتَأْمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلْبِرِّ وَتَنسَوْنَ أَنفُسَكُمْ وَأَنتُمْ تَتْلُونَ ٱلْكِتَـٰبَ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۝٤٤

آيا امر کوئ تاسې نورو خلقو ته په نېکی سره او هېروئ ځانونه خپل؟ حال دا چې تاسې لولئ کتاب (چې په کې د قول او عمل په نه سمون وعيد دی) آيا تاسې نه پوهيږئ (دخپلو افعالو په بدی).

تفسير: ديهودانو ځينو عالمانو به داسې کول، چې نورو خلقو ته به يې ويل چې «داسلام دين ښه دی، او دوی به په خپله نه مسلمانېدل» دې يهودي پوهانو او نورو ظاهربينو خلقو ته به په دغسې مواردو کې داسې شبهې پيدا کېدې «کله چې مونږ د شريعت د احکامو په تعليم کې قصور نه کوو او حقه خبره نه پټوو نو دېته به څه ضرورت پاتې وي، چې مونږ په خپله هم پرې عمل وکړو، لکه چې زمونږ له هدايت سره سم ډېر خلق شرعي احکام ادا کوي نو د (الدال علی الخير کفاعله) په حکم سره د دوی عملونه ځمونږ دي»، نو په دې آيت کې ددې دواړو مفکورو بطلان فرمايل شوی دی.

ددې آيت مطلب دا دی چې واعظ ته ښايي چې په خپل وعظ باندې خامخا عمل وکړي، او دا غرض نه دی چې فاسق دې چا ته نصيحت نه کوي.

وَٱسْتَعِينُوا۟ بِٱلصَّبْرِ وَٱلصَّلَوٰةِ ۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى ٱلْخَـٰشِعِينَ ۝٤٥ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَـٰقُوا۟ رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ۝٤٦

او مدد وغواړئ (په هره سختی کې له الله) په صبر او لمانځه سره او په تحقيق دا لمونځ خامخا ډېر دروند دی مګر (نه دی دروند) په عاجزي کوونکو (خوند آخيستونکو له طاعته). هغو کسانو چې يقين کوي چې بېشکه دوی مخامخ کېدونکي دی له پروردګار خپل سره او په تحقيق سره دوی هم ده ته (په آخرت کې) بېرته ورتلونکي دي.

تفسير: د اهل کتاب عالمانو چې د حقانيت له څرګندېدلو نه وروسته يې هم په محمد صلی الله عليه وسلم ايمان نه راووړ، د هغه لوی سبب دمال او جاه سره مينه او محبت وو؛ چې الله تعالی ددې دواړو علاج دلته ورښودلی دی، د صبر

کولو په سبب د مال مینه او حرص له مینځه ځي، او د لمونځ کولو په اثر عبودیت او تذلل پیدا کیږي، او د لویوالي مینه کمیږي، او په تحقیق لمونځ ډېر دروند دی مګر نه دی دروند په عاجزي کوونکو خوند اخیستونکو له طاعته، یعنې صبر او د زړه په حضور لمونځ کول ډېر دروند او سخت کار دی، مګر دا سخت کار یواځې په هغه چا آسان دی چې عاجزي کوي او له الله تعالی نه ویریږي، او ددوی خیال او فکر په همدې لوري وي چې مونږ خامخا له الله تعالی سره مخامخ او د هغه الله په لوري ورتلونکي یو، یعنې په لمانځه کې د الله تعالی تقرب حاصلیږي، ګواکې (ګویا کې) له هغه سره کتنه ده، یا به په قیامت کې د حساب او کتاب لپاره ور وړاندې کیدونکي یو.

﴿يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٤٧﴾

ای بني اسرائیلو (دیعقوب اولادې !) یاد کړئ نعمت زما هغه چې انعام مې کړی دی په تاسې او (بل دا یاد کړئ ! چې) بېشکه ما غوره کړي یئ تاسې (نیکونه ستاسې) په خلقو (د زمانې خپلې).

تفسیر: څرنګه چې تقوی او کامل ایمان حاصلول د صبر، حضور، او په عبادت کې د غرق کیدلو په وسیله سخت وو، نو آسانه لاره یې ښیي چې هغه شکر دی، نو څکه حق تعالی خپل هغه انعامات او احسانات ور په یادوي چې وخت په وخت یې په دوی باندې کړي دي، او هم د دوی د ناوړو (نارواوو) کارونو ذکر کوي، دا یوه فطري مسئله ده، چې یواځې انسان، بلکه حیوانات هم د خپل منعم سره مینه لري، او د هغه پیروي کوي، هم دغه مضمون په څو رکوع ګانو کې په مفصل ډول بیان شوی دی.

فائده: په عالمیانو باندې دبني اسرائیلو له فضیلت څخه مطلب دا دی چې دوی د پیدایښت له ابتدا څخه ددې خطاب تر نازلیدو پورې په نورو ګردو فرقو فضیلت درلود، او هیڅوک د دوی ساری (سیال) نه وو، کله چې هغوی د پاک قرآن او د آخرې زمانې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په مقابل کې ودریدل، نو د دوی فضیلت له منځه لاړ، او د ﴿ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ﴾ او ﴿ٱلضَّآلِّينَ﴾ لقب ور په برخه شو، او د محمد صلی الله علیه وعلی آله وأصحابه وسلم پیروانو (تابعدارانو) ته د ﴿كُنتُمۡ خَيۡرَ أُمَّةٍ﴾ صفت ورکړ شو.

﴿وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا لَّا تَجۡزِي نَفۡسٌ عَن نَّفۡسٖ شَيۡـٔٗا وَلَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا شَفَٰعَةٞ وَلَا يُؤۡخَذُ مِنۡهَا عَدۡلٞ وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ ۝٤٨﴾

او ووېرېږئ (له عذابه) د هغې ورځې چې لرې کولی به نه شي هیڅ نفس له هیڅ (کافر) نفس څخه هیڅ شی (له عذابه) او نه به منل کیده شي له دغه نفس څخه شفاعت (سپارښت د هیچا) او وابه نه خیستئ شي له دغه نفس څخه بدل (فدیه) او نه به له دوی سره مدد وکړی شي (په دفع د عذاب کې).

تفسیر: کله چې څوک په کومه بلا اخته کیږي؛ نو د هغه دوستان زیاتره له دې وسیلو څخه کار اخلي، لومړی د هغه د حق د ادا کولو لپاره زیار (محنت) کوي، که په دې وسیله کار ونه شو، نو د سپارښت په وسیله زیار (محنت) کوي چې هغه له دې بلا نه وژغوري (وساتي)، که یې په دې سره هم څه له لاسه ونشوه، نو خپل دوستان او مرستیالان سره ټولوي، څو د هغه د ژغورلو (ساتلو) لپاره څه تدبیر جوړ کړي، که په دې توګه هم څه کار ونه شو نو بیا څه تاوان او فدیه وروړاندې کوي چې خپل عزیز له هغې بلا نه خلاص کړي، که په دې څلورو طریقو هم څه ونه شي، نو خپل مرستیالان (مدد ګاران) راټولوي، څو چې د متو په زور او قوت سره هغه وژغوري، حق تعالی هم له پورتني ترتیب سره سم دلته ارشاد فرمایي چې: کوم سړی که په هره اندازه وي، د الله تعالی دښمنانو ته له دې څلور ګونو صورتونو څخه په هیڅ یو صورت کې څه ګټه نشي رسولی.

بني اسرائيلو به ويل: که مونږ هر څومره زياته ګناه هم وکړو، الله تعالى په مونږ عذاب نه نازلوي، او نه له مونږ څخه پوښتنه کوي، ځکه چې څمونږ پلرونه او نيکونه انبياء تېر شوي دي، هغوى له الله تعالى څخه څمونږ مغفرت او برائت حاصلوي، نو الله تعالى فرمايي چې: ستاسې دا خيال غلط دى.

ددې آيت په سبب له هغه شفاعت څخه انکار نه کيږي، چې په هغه باندې مونږ (اهل السنت والجماعت) قائل يو لکه چې په نورو آيتونو کې مذکور دي، دغه آيت سره د ظاهري تعميم او نور قرآني آيتونه د ﴿فَمَا لَنَا مِن شَافِعِينَ﴾ (الشعراء سورت سلم آيت) په اساس يواځې په هغه شفاعت پورې تخصيص لري؛ چې شافع يا مشفوع له يا شفاعت کې کفر، شرک، او يا له مړو څخه شفاعت غوښتل شوى وي.

وَإِذْ نَجَّيْنَٰكُم مِّنْ ءَالِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوٓءَ ٱلْعَذَابِ يُذَبِّحُونَ أَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَآءَكُمْ ۚ وَفِى ذَٰلِكُم بَلَآءٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٤٩﴾

او (ياد کړئ) هغه وخت چې نجات درکړى وو، مونږ (نيکونو) ستاسې ته له عملې د فرعون څخه؛ چې رساوه به يې تاسې ته سخت عذاب، چې ذبح کول به يې ځامن ستاسې او ژوندي به يې پرېښودې (دخدمت لپاره) ښځې (لونې) ستاسې، او په دې (حلالولو يا خلاصولو يا ټولو کې مصيبت يا نعمت يا ...) کې امتحان وو له (طرفه) د پرودګار ستاسې ډېر لوى.

تفسير: ﴿بَلَآءٌ﴾ څو معنى ګانې لري، که د ﴿ذَٰلِكُم﴾ اشاره د ذبحې په لورې واخيستلى شي، نو معنى به يې «مصيبت» وي، که نجات ته اشاره وي نو د ﴿بَلَآءٌ﴾ معنى به «نعمت» وي، او که د ذبحې او نجات دواړو په لورې اشاره وي، نو له ﴿بَلَآءٌ﴾ څخه به مطلب «امتحان» او ازموينه وي.

وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ ٱلْبَحْرَ فَأَنجَيْنَٰكُمْ وَأَغْرَقْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴿٥٠﴾

او (ياد کړئ) هغه وخت چې څيرې کړ مونږ د تاسې لپاره بحر؛ نو نجات درکړ مونږ تاسې ته، او غرق کړل مونږ عمله د فرعون (سره له فرعون) حال دا چې تاسې ورته کتل.

تفسير: يعنې اى بني اسرائيلو ياد کړئ هغه لوى نعمت چې ستاسې پلرونه او نيکونه د فرعون له وېرې وتښتېدل، او داسې يو ځاى ته ورسېدل، چې وړاندې مخامخ دوى ته لوى درياب او وروسته په دوى پسې د فرعون لوى لښکر راته، چې هغوى را چاپېر او ټول سره ګير او په لوى عذاب او وير کې اخته کړي، نو مونږ تاسې ته نجات او خلاصى در کړه، او د فرعون لښکر مو ټول ډوب کړ، دا قصه وروسته په تفصيل سره راځي.

وَإِذْ وَٰعَدْنَا مُوسَىٰٓ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ ٱتَّخَذْتُمُ ٱلْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِهِۦ وَأَنتُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿٥١﴾

او (ياد کړئ) هغه وخت چې وعده کړې وه مونږ له موسى سره څلوېښت شپې، بيا ونيوه تاسې خوسى (سخى) (معبود) پس له (تللو) د موسى (طور ته) او وئ تاسې (په دې کار کې په خپلو نفسونو) ظالمان.

تفسير: دا قصه او احسان هم د يادولو وړ (لائق) دى چې مونږ له موسى عليه السلام سره د (تورات) د ورکولو وعده څلوېښت شپې او ورځې کېښوده، وروسته له دې چې موسى د (طور) غره ته تشريف يووړ، بني اسرائيل د خوسي (سخي) په عبادت مشغول او لګيا شول، نو تاسې ډېر بې انصاف يې چې خوسى (سخى) مو په خپلې خدايى وټاکه (ونيوه) دا قصه هم په تفصيل سره راځي.

ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۲﴾

بیا عفوه وکړه مونږ له تاسې نه وروسته له دغه (دخوسي «سخي» دعبادت کولو نه) لپاره ددې چې تاسې شکر ګذار شئ.

تفسیر: مطلب دا چې مونږ ستاسې له دې ښکاره شرکه سره بیا هم ستاسې له دې ګناه نه تېر شو، او ستاسې توبه مو ومنله، او تاسې مو سمدلاسه لکه د فرعونیانو په شان ونه وژلئ، که څه د هغوی ګناه نسبت تاسو ته لړه هم وه، خو هلاک مو کړل چې تاسې یې شکر ادا کړئ، او څما احسان ومنئ.

وَاِذْ اٰتَیْنَا مُوْسَی الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۵۳﴾

او (یاد کړئ) هغه وخت چې ورکړی وو مونږ موسی ته کتاب (تورات) او بیلوونکی (دحق او باطل) لپاره ددې چې تاسې سمه لاره وموموئ (په تورات سره).

تفسیر: کتاب خو (تورات) دی، له (فرقان) نه هغه شرعیه احکام مراد دي چې د هغوی له مخې جائزې او نا جائزې مسئلې راڅرګندیږي، یا له (فرقان) نه مقصد د موسی علیه السلام معجزې دي، چې دهغوی له مخې به د رښتیا او دروغو او دمؤمن او کافر تمیز کېده، یا به (فرقان) د همغه کتاب (تورات) بدل وي، چې په هغه سره هم حق او نا حق جلا (جدا) کیږي.

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰی لِقَوْمِهٖ

او (یاد کړئ !) هغه وخت چې وویل موسی قوم خپل ته

تفسیر: له قوم نه خاص همغه خلق مراد دي، چې هغوی خوسي (سخي) ته سجدې کولې.

یٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوْبُوْۤا اِلٰی بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوْۤا اَنْفُسَكُمْ ؕ

ای قومه زما ! بېشکه تاسې (چې یئ) ظلم کړی دی تاسې پر ځانو خپلو په سبب د نیولو د تاسې خوسي (سخي) لره (په الوهیت سره) پس توبه وباسئ (ټول) خالق خپل ته نو ووژنئ ځانونه خپل؛

تفسیر: یعني هغه کسان چې خوسي (سخي) ته یې سجده نه ده ایښې، هغوی دې هغه کسان ووژني چې خوسی (سخی) یې معبود ګڼلی، او سجده یې ورته کړې وه.

ذٰلِكُمْ خَیْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ ؕ فَتَابَ عَلَیْكُمْ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِیْمُ ﴿۵۴﴾

دغه (ځان وژل) ستاسې بهتر دي تاسې ته په نزد د خالق ستاسې، پس قبوله یې کړه توبه ستاسې ! بېشکه الله هم دی ښه توبه قبلوونکی ښه مهربان دی (په توبه کوونکو).

تفسیر: عالمان په دې خبره کې سره اختلاف لري چې آیا همدا وژل کېدل توبه وه؟ او که د توبې تتمه وه؟ لکه چې څمونږ په «محمدي شریعت» کې د عمد د قاتل د توبې د مقبولیت لپاره دا خبره هم ضروري ده، چې قاتل دې د مقتول د ورثې په لاس کې وسپارلی شي، د مقتول وارثان واک او اختیار لري چې هغه قاتل ووژني، که یې بخښي.

وَإِذْ قُلْتُمْ يَٰمُوسَىٰ لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى ٱللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْكُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ وَأَنتُمْ تَنظُرُونَ ﴿٥٥﴾ ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٥٦﴾

او (یاد کړئ !) هغه وخت چې وویل تاسې: ای موسی ! له سره به باور ونکړو مونږ په خبره ستا تر هغه پورې چې په خپله ووینو الله ښکاره، پس ونیولئ تاسې تندر حال دا چې تاسې (ورته) کتل، پس له هغه بیا ژوندي کړئ مونږ تاسې پس له مرګه ستاسې لپاره ددې چې تاسې شکر ګذار شئ.

تفسیر: هغه وخت هم ضرور یاد کړئ ! چې سره له دومره احسانونو او ښیګڼو تاسې موسی علیه السلام ته وویل چې: «مونږ په دې خبره تر هغه پورې باور نشو کولی چې دا د پاک الله خبرې دي، ترڅو مونږ پخپلو سترګو الله تعالی ونه وینو» ستاسې دهمدې غوښتنې په سبب وو چې د برېښنا په وسیله ووژل شوئ، بیا د موسی علیه السلام په دعا سره بېرته ژوندي شوئ.

دا د هغه وخت قصه ده چې موسی علیه السلام اویا (۷۰) تنه غوره سړي له ځانه سره د (طور) غره ته بیولي وو، چې د الله تعالی کلام واوري، کله چې دوی په خپلو غوږونو د پاک الله خبرې واورېدلې نو د بني اسرائیلو هم دې اویا تنو منتخبو سړیو وویل چې: «مونږ په داسې خبرو باندې چې ویونکی یې نه راښکاري او نه یې وینو؛ باور نشو کولی، مونږ ته الله تعالی راوښیه ! چې په خپلو سترګو یې په عین المشاهده ووینو، او په غوږونو سره د هغه خبرې واورو، ددې غوښتنې له امله و چې ورباندې ټکه (تندر) ولوېده، او د تندر له اثره ټول سره مړه شول.

وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ ٱلْغَمَامَ وَأَنزَلْنَا عَلَيْكُمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ ۖ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ۖ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٥٧﴾

او (یاد کړئ) هغه وخت چې سوری ګرځولی وو مونږ په تاسې وریځ (د تیه په میدان کې) او نازل کړی وو مونږ په تاسې من (ترنجبین) او سلوی (مرځان) وخورئ ! له پاکیزو د هغو شیانو نه چې درکړې دي مونږ تاسې ته، او ظلم نه وو کړی دوی پر مونږ باندې (هیڅ په دغه عصیان سره) او لیکن وو دوی چې په ځانونو خپلو به یې ظلم کاوه (په کفران او عصیان سره).

تفسیر: کله چې فرعون ډوب شو او بني اسرائیل د الله تعالی په امر سره له (مصره) نه د (شام) په لوري رهي (روان) شول، په یوه سپېره ډاګ (صفا میدان) کې د هغوی خیمې وشلېدې، او دوی د لمر له تودوالي نه سخت په عذاب شول، دلته د الله تعالی په فضل سره دوی باندې د وریځې سوری وشو، څرنګه چې دوی ته دخوړلو لپاره څه شی نه پیدا کېده، د پاک الله له لوري د دوی د خوړلو لپاره (من) او (سلوی) ورنازل شول، (من) لکه نبات یو ډېر خواږه خواړه وو، او داني به یې ترنجبین (دځوزو ګوړی) ته ورته وې، کله چې دوی د شپې له مخې ویده کېدل، سحر (ګهیځ) به ددې لښکر په شاوخوا کې د (من) انبارونه پراته وو، چې هر چا به له هغې څخه دخپل حاجت سره سم اخیسته، او «سلوی» یو مرغه دی چه مونږ ورته مرځ وایو، چې هر ماښام به ددې مرځانو په زرهاوو داني سره ټولېدلې، چې د لږ څه تیارې څخه وروسته به هر سړي له هغو څنې خپل ضرورت سره سم نیول، وریتول او خوړل به یې، تر ډېرې مودې پورې ددوی خواړه همدا (من) او (سلوی) وو.

﴿كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ﴾ - خورئ تاسې له پاکیزه د هغو شیانو چې روزي درکړی ده مونږ تاسې ته، یعنې په دې لطیفې او خوندورې غذا باندې اکتفاء وکړئ، او په ډېره خوښی سره یې وخورئ، او د بلې ورځې لپاره یې د ذخیرې (زېرمې) په ډول مه ساتئ، او له نورو سره د هغه د مبادلې غوښتنه مه کوئ.

﴿وَمَا ظَلَمُونَا﴾ الآیه – او هیڅ ظلم نه وو کړئ دوی پر مونږ باندې په دغه عصیان سره، لیکن دوی په خپلو ځانونو باندې ظلم کوې په کفران او عصیان سره، اول یې داسې ظلم وکړ چې ددې په زېرمه (ذخیره) کولو یې پیل (شروع) وکړ، چې هغه به ورستېده، بدبویي به یې ختله، دوهم یې د هغې د مبادلې غوښتنه وکړه چې نسک، هوږه، پیاز، او نورې غلې او ترکاری راکړی شي، چې ددې له امله په راز راز تکلیفونو اخته شول.

وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ ۚ وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٨﴾

او (یاد کړئ !) هغه وخت چې وویل (مونږ بني اسرائیلو ته د موسی په ژبه) چې ننوځئ ! دغې قریې (أریحا) ته، پس خورئ ! له (میوو د) دې څخه هر چېرته چې مو خوښه وي (څه چې مو زړه غواړي) پرېمانه او ننوځئ ! په دروازه (ددې ښار) کې سجده کوونکي او ووایئ ! (ای ربه وبخښه څمونږ ګناهونه !) چې وبخښو تاسې ته ګناهونه ستاسې، او ژر ده چې زیات به کړو نېکانو ته (اجر).

تفسیر: کله چې بني اسرائیل په دې پاس ډاګ کې له ډېرو ګرځېدلو څخه تنګ شول، او د ډېر (من) او (سلوی) له خوړلو ستړي شول، نو پر دوی امر وشو چې په هغه ښار کې ننوځئ ! چې نوم یې (اریحا) وو، او په هغه کې د (عمالقه) قوم چې د (عاد) له قومه څخه وو هستوګنه درلوده (لرله)، ځینې وایې چې: دا ښار بیت المقدس وو.

﴿وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُولُوا﴾ او ننوځئ په دروازه ددې ښار کې سجده کوونکي (یعنې) ددې ښار په دروازه کې د شکر سجده وکړئ !، او بیا په کې ننوځئ، دا خو بدني شکر شو، ځینې وایې چې: د تواضع او عاجزی له امله خپل ملاوې لږ څه کږې کړئ ! او په ژبه سره د خپلو ګناهونو بخښنه وغواړئ ! دا خو لساني شکر شو، هر هغه څوک چې دا دواړه کارونه کوي، دهغه ګردې خطاوې بخښلی کیږي، او د نیکو بندګانو ثوابونه ورزیاتوو.

فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَنزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٥٩﴾

پس بدله کړه هغو کسانو چې ظلم یې کړی وو (په خپلو ځانونو) خبره په بل شان له هغې خبرې څخه چې ویلې شوې وه دوی ته؛ پس نازل کړ مونږ پر هغو کسانو چې ظلم یې کړی وو عذاب له (طرفه) د آسمانه په سبب ددې چې وو دوی چې سر به یې غړاوه (د الله له فرمانه).

تفسیر: داسې تبدیلي یې په کې وکړه، چې د (حطة) په ځای یې دټوکو او مسخرو په ډول (حنطة) وویل (چې معنی یې غنم دی) او دسجدې په ځای به په خپلو کوناټیو ښوئیدل، کله چې هغه ښار ته ورسېدل، نو په هغوی کې طاعون ور ګډ شو، او په یوه ماسپښین کې اویا زره یهودان مړه شول.

وَإِذِ اسْتَسْقَىٰ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ فَقُلْنَا اضْرِب بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ۖ فَانفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ

او (یاد کړئ !) هغه وخت چې اوبه وغوښتې موسی خپل قوم ته (په میدان د تیه کې)پس وویل مونږ (موسی ته) چې ووهه په همسا خپلې سره تیږه (ګټه) (نو چې ویې وهله تیږه) پس وخوټېدلې (روانې شوې) له هغې تیږې څخه دوولس چینې.

تفسير: دا قصه هم دهغه میدان ده، کله چې هغوی اوبه ونه میندلې، نو موسی علیه السلام پر یوه تیږه باندې خپله همسا ووهله، نو دولس چینې وبهېدې، حال دا چې د بني اسرائیلو قبیلې هم دولس دي، دځینو قبیلو سړي زیات او دځینو قبیلو سړي لږ وو، د هر قوم په تناسب یوه چینه وه، او دپیژندګلوۍ نښه یې هم دغه موافقت وو، یا داسې ټاکلی (مقرر) شوی وه چې ددې تیږې له فلانی خوا چې په فلاني لوري کومې اوبه بهیږي، هغه به د فلاني قوم اوبه وي، هغه لنډه نظره چې له هسې معجزاتو څخې انکار کوي، نو (سړي نه دي، دوی دي چپ له سړیتوبه) وګورئ ! چې «مقناطیس» په څه ډول سره اوسپنه خپل لوري ته کشوي (را کاږي) نو دې تیږې ته هم الله تعالی هسې یو قوت وربخښلی وو چې له هر لوري څخې به یې اوبه ځانته کشولې (رابښکلې) او بیا به یې خپلو شاوخواوو ته بهولې.

قَدۡ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشۡرَبَهُمۡۖ كُلُواْ وَٱشۡرَبُواْ مِن رِّزۡقِ ٱللَّهِ وَلَا تَعۡثَوۡاْ فِي ٱلۡأَرۡضِ مُفۡسِدِينَ ۝٦٠

په تحقیق سره وپېژانده هر قوم ځای د اوبو څښلو خپلو (وویل مونږ) خورئ ! او څښئ ! له (خاصې) روزی د الله څخه (بې له واسطې د اسبابو) او مه تېرېږئ له حده په ځمکه کې حال دا چې وراني کوونکي اوسئ تاسې (په خپل فساد اچولو سره).

تفسير: یعنی بیا الله تعالی وفرمایل چې: له (من) او (سلوی) څخې خورئ، او ددغو چینو له اوبو څخې څښئ، او په جهان کې فساد مه اچوئ !

وَإِذۡ قُلۡتُمۡ يَٰمُوسَىٰ لَن نَّصۡبِرَ عَلَىٰ طَعَامٖ وَٰحِدٖ فَٱدۡعُ لَنَا رَبَّكَ يُخۡرِجۡ لَنَا مِمَّا تُنۢبِتُ ٱلۡأَرۡضُ مِنۢ بَقۡلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُومِهَا وَعَدَسِهَا وَبَصَلِهَاۖ

او (یاد کړئ) هغه وخت چې وویل تاسې ای موسی ! هیڅکله صبر نشو کولی مونږ پر طعام یو (قسم د من او سلوی) باندې، پس وغواړه څمونږ لپاره له خپل پروردګار نه چې راوباسي مونږ ته له هغو شیانو څخه چې زرغونوي یې ځمکه له سابو (ساګو) ددې، او له بادرنګو (ترو) ددې، او له هوږې (یا غنمو یا نخودو) ددې او له نسکو ددې، او له پیازو ددې.

تفسير: دا قصه هم د همغه میدان ده، بني اسرائیلو چې د هغو غیبي طعامونو له خوړلو څخه ماړه شول نو یې په داسې وینا شروع وکړه.

قَالَ أَتَسۡتَبۡدِلُونَ ٱلَّذِي هُوَ أَدۡنَىٰ بِٱلَّذِي هُوَ خَيۡرٌۚ

نو وویل (موسی) آیا بدلوئ ! (آخلئ) تاسې هغه شی چې هغه ناکاره دی په هغه شي چې هغه ډېر غوره دی.

تفسير: یعنې هغه (من — ترنجبین) او (سلوی — مرځان) چې له هره حیثه تاسې ته ښه دي په هوږو، پیازو، او نورو سره یې ولې بدلوئ؟

ٱهۡبِطُواْ مِصۡرٗا فَإِنَّ لَكُم مَّا سَأَلۡتُمۡۗ

(کله چې مو داسې وکړل نو) کوز شئ (دشام له تیه نه) یوه ښار ته پس بېشکه تاسې ته شته دي هغه شی چې غواړئ یې.

تفسير: که ستاسې زړه همداسې شیانو ته کیږي، نو کوم ښار ته لاړ شئ چې ستاسې دا مطلوبه شیان ټول درورسیږي لکه چې بیا همداسې وشول.

وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ؕ

اومقرر کړی شو پر دوی (دنعمت دکفران او په خپل قسمت د نارضایی په سبب) ذلت او محتاجی، او اخته شول دوی په غضب له (جانبه د) الله.

**تفسیر:** ذلت او خواري هم دا ده چې یهودان تل د مسلمانانو او نصاری وو رعیت او محکوم دي، که څه هم له دوی سره ډېر مال وي، خو د پت او عزت خاوندان نه بلل کیږي، نو دا مال د هغو دخوارئ سبب او ددوی د ځان وبال ګرځي، یهودان له حکومت او خپلواکی ځنې چې د پت او عزت سبب دی، بیخي بې برخې دي، ولې چې دوی له هغه عظمت او عزت څخه چې الله تعالی دوی ته وربخښلي وو مخونه واړول، او رجوع یې ترې وکړه، نود الله تعالی په دې قهر او غضب اخته شول.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿۶۱﴾

دا (خواري او عاجزي) په سبب ددې وه چې بېشکه دوی وو کافران (منکران) په آیتونو د الله او وژل به یې انبیاء په نا حقه سره، دا (کفر او قتل) په دې سبب وو؛ چې سرکشي یې کوله (له احکامو د الله نه) او وو دوی چې له حدودو به تېریدل (دعصیان په سبب).

**تفسیر:** یعنې ددې ذلت او مسکنت او دالهي غضب باعث د دوی کفر او د انبیاوو علیهم السلام وژل وو، او د کفر او قتل باعث؛ دالله تعالی د احکامو مخالفت او نافرماني او دشریعت له حدودو څخه وتل وو.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰى وَالصّٰبِـِٕيْنَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۶۲﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې یهودان شوي دي، او نصرانیان او بې دینان؛ هر هغه چا (له دوی ځنې) چې ایمان راوړی دی په الله او په ورځ د قیامت باندې او عمل یې کړی دی د نېکو (سم له محمدي شریعت سره) نو وي به دوی ته ثواب ددوی په نزد د رب ددوی او نه به وي (هیڅ قسم) وېره په دوی باندې او نه به دوی هیڅېرې خپه کیږي (په وخت د جزا کې).

**تفسیر:** یعنې دا عنایت په کومې خاصې فرقې پورې موقوف نه دی، ایمان راوړل شرط دي، نېک عمل چې د هر چا په برخه شو، همغه ثواب به مومي، نو ځکه یې وفرمایل چې: بني اسرائیل په دې خبره مغرور وو چې: «مونږ د انبیاوو علیهم السلام اولاده یو مونږ له هره خوا الله تعالی ته نږدې او ښه یو».

فائده: د موسی علیه السلام امت ته (جهود) یا (یهود) او د عیسی علیه السلام امت ته (نصاری) یا (ترسا) وایې، (صابئین) داسې فرقه ده چې هغوی په خپل ګمان سره ښه ښه شیان له هره دینه خپلو ځانونو ته غوره کړي دي، لکه چې دوی ابراهیم علیه السلام مني، د پرښتو عبادت کوي، زبور لولي، د کعبې شریفې په لوري لمونځ کوي.

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ بِقُوَّةٍ وَّاذْكُرُوْا مَا فِيْهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۶۳﴾

او (یاد کړئ) هغه وخت چې واخیست مونږ محکم عهد ستاسې څخه، او پورته کړ مونږ په سر

ستاسې د طور (غر) واخلئ هغه څه (احکام) چې در کړي دي مونږ تاسې ته په ښه کوښښ سره، او یاد کړئ هغه (احکام) چې په هغه کې دي؛ لپاره ددې چې تاسې ځانونه وساتئ (له ګناهونو څخه).

تفسیر: وایې کله چې (تورات) نازل شو، نو بني اسرائیلو له شرارته ویل: «د (تورات) حکم دروند او مشکل دی، د هغه تعمیل څمونږ له لاسه نه دی پوره»، ددې وینا له امله الله تعالی یوه غره ته امر وکړ چې د دوی په سرونو باندې راښکته شي، نو په شاوخوا کې یې اورونه بل شول، او دوی ته هیڅ یو داسې فرصت او موقع پاتې نه شوه چې د (تورات) له منلو نه سر وغړوي، نو یې مجبورا د هغه احکامو ته غاړه کېښوده.

پاتې شوه دا شبهه چې د (تورات) په منلو کې د هغوی په سر باندې د غره ځړېدل ځرګنده اکراه او اجبار دی چې د ﴿لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ﴾ له آیت څخه چپ او د تکلیف له قاعدې نه بیخي خلاف دی، ځکه چې د تکلیف بناء خو په اختیار باندې ده، او اکراه له اختیار سره مناقضه ده.

نو ددې شبهې ځواب دادی چې: بني اسرائیلو د موسی علیه السلام دین لا له پخوا څخه منلی وو، او څو څو ځلې یې له موسی علیه السلام څخه غوښتنه کړېوه چې «کوم هسې آسماني کتاب مونږ ته راوړئ، چې مونږ د هغه په احکامو عمل وکړو» او پر دې باندې یې معاهده سره کړې وه، نو کله چې (تورات) راغی، او هغوی ته وسپارل شو، عهد ماتولو ته یې ملاوې وتړلې، دلته پر دوی باندې د غره تعلیق د وعده خلافۍ له امله وشو، نه د موسی علیه السلام د دین د نه منلو له سببه.

ثُمَّ تَوَلَّيۡتُم مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَۖ فَلَوۡلَا فَضۡلُ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ وَرَحۡمَتُهُۥ لَكُنتُم مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٦٤

بیا شاه کړه تاسې (د الله له فرمانه وګرځېدئ) پس له دغه عهده؛ نو که چېرې نه وای فضل د الله پر تاسې او رحمت (مهرباني) دده (دتوبې په قبلولو او یا تاسې ته د محمد په درلېږلو) نو هرومرو (خامخا) به شوي وئ تاسې له زیانکارانو څخه.

تفسیر: یعنې وروسته له عهد او میثاقه بیا له خپلو خبرو نه واوښتئ، که د الله تعالی فضل په تاسې باندې نه وی شوی، نو بیخي به پنا کیدئ، یعنې په همغه وخت کې به هلاکیدئ، یا دا چې سره له توبې او استغفاره او د آخر الزمان نبي صلی الله علیه وسلم له متابعته سره به مو هم هغه ګناهونه نه معافېدل.

وَلَقَدۡ عَلِمۡتُمُ ٱلَّذِينَ ٱعۡتَدَوۡاْ مِنكُمۡ فِي ٱلسَّبۡتِ فَقُلۡنَا لَهُمۡ كُونُواْ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ ۝٦٥

او خامخا په تحقیق سره ښه پېژندلي دي تاسې هغه کسان چې تجاوز یې کړی وو له تاسې څخه (د ماهیانو په ښکار) په (ورځې د) شنبې کې نو وویل مونږ دوی ته چې: شئ ! بیزوګان ذلیلان (خوار شوي).

تفسیر: بني اسرائیلو ته په (تورات) کې حکم شوی وو چې «دشنبې ورځ عبادت ته مقرره ده، په دې ورځ کې د ماهي (کب) ښکار مه کوئ !» دې خلقو په چل او فرېب سره د شنبې په ورځ هم ښکار کاوه، نو الله تعالی دوی مسخ کړل، او د هغوی صورتونه یې د بیزوګانو په شان واړول، په دوی کې که څه هم انساني پوهه او شعور وو، او یوه به بل ته کتل، مګر خبرې یې نه شوې سره کولی او ژړل به یې، له درې ورځو وروسته ټول مړه شول، دا واقعه د داود علیه السلام په زمانه کې شوې ده، ددې پېښې تفصیل د (الأعراف) په سورت کې راځي.

فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۶۶﴾

نو وګرځاوه مونږ دا (عقوبت او مسخه) عبرت پند لپاره د هغو خلقو چې حاضر وو (ددې عقوبت په زمانه کې) او لپاره د هغو خلقو چې ورروسته له دې (عقوبت څخه تر قيامته راځي) او پند لپاره د پرهيزګارانو.

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖٓ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ؕ

او (ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې ووېل موسى خپل قوم ته چې بېشکه الله امر کوي تاسې ته چې حلاله کړئ يو غوا (چې قاتل در معلوم شي).

تفسير: يعنې ياد کړئ هغه وخت چې په بني اسرائيلو کې يو سړی ووژل شو، او د هغه وژونکی نه وو معلوم، او دوی هغه يو په بل باندې سره اړاوه، نو موسى عليه السلام وفرمايل: «د الله تعالى دا امر دی، چې يوه غوا حلاله کړئ او دهغې يوه ټوټه په هغه مړي ووهئ ! نو دا مړی به ژوندی شي او خپل قاتل به په خپله دروښيي»، الله تعالى په همدې ډول هغه مړی ژوندی کړ، او هغه خپل قاتل چې وارث يې وو وروښود چې د ده د مال په طمع يې وژلی وو، په نتيجه کې قاتل په قصاص ورسېد، او ورثه يې له ميراثه محروم پاتې شول.

قَالُوْٓا اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ؕ

ووېل (بني اسرائيلو) آيا ګرځوې ته مونږ مسخره؟

تفسير: يعنې له مونږ سره مسخرې کوې؟ څکه چې د غوا په حلالولو کله قاتل معلومېږي؟ او مونږ دا نه ليدلي دي، او نه مو اورېدلي دي؛ چې د غوا د غوښې ديوې ټوټې له وهلو څخه به مړی ژوندی کيږي.

قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۶۷﴾

ووېل (موسى) پناه غواړم په الله له دې نه چې شم له ناپوهانو (مسخره کوونکو څخه).

تفسير: يعنې ټوکې او مسخرې کول د ناپوهانو او جاهلانو کار دی، په تېره بيا دا کار په شرعي احکامو کې نشته، او له (نبي) څخه هيڅکله کيدونکی نه دی.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ؕ

ووېل (بني اسرائيلو) چې وغواړه لپاره څمونږ له پروردګار خپل چې بيان کړي مونږ ته چې څنګه ده هغه غوا.

تفسير: يعنې څرنګه ده هغه غوا چې مړی پرې ژوندی کيږي، يعنې د هغې عمر څومره دی؟ او د هغې حالات څرنګه دي؟ زړه ده که وړه ده؟ او په څه ډول يې ومومو؟

قَالَ اِنَّهٗ يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌ ؕ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذٰلِكَ ؕ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿۶۸﴾

ووېل (موسى) چې: بېشکه الله وايي: بېشکه هغه يوه غوا ده؛ چې نه ډېره زړه ده، او نه ډېره وړه ده، ميانه حاله ده په منځ ددغو (زوړوالي او وړوکوالي) کې، پس وکړئ هغه څه چې پرې مامور شوي يئ !.

تفسير: يعنې هغه غوا حلاله کړئ.

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا لَوْنُهَا ۚ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا
تَسُرُّ النَّاظِرِينَ ﴿٦٩﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِيَ

بيا وويل (بني اسرائيلو) چې وغواړه (اې موسی) لپاره څمونږ له پروردګار خپل، چې بیان کړي مونږ ته چې څرنګه دی رنګ یې؟ وویل (موسی) چې بېشکه الله وايي: بېشکه هغه یوه غوا ده زېړه چې تک زیړ دی رنګ یې، چې خوشالوي (زړونه د) دلیدونکو وویل (بني اسرائیلو) چې وغواړه لپاره څمونږ له پروردګار خپل چې بیان کړي مونږ ته چې څه قسم ده دغه غوا؟ (کار کوونکې ده که صحرایي ده؟).

تفسیر: یعني په ښکاره ډول سره یې راوښيئ چې هغه غوا څه قسم ده، او د څه کار لپاره ده ؟ .

إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّا إِن شَاءَ اللَّهُ لَمُهْتَدُونَ ﴿٧٠﴾

بېشکه غوا شبهه اچولې پر مونږ (ځکه زېړې غواګانې ډېرې دي) او بېشکه مونږ که اراده وکړي الله، خامخا لار موندونکي یو.

تفسیر: یعني ددغې غوا یا قاتل موندونکي یو، په حدیث کې راغلي دي چې که «ان شاء الله» یې نه وی ویلي، نو هیچېرې به یې دغه غوا نه وه موندلې.

قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا ۚ

وویل (موسی) بېشکه الله وايي: بېشکه دا یوه غوا ده چې نه ربړ (تکلیف) ایستونکې ده چې قلبه کوي ځمکه، او نه اوبه کوي (په ارټ سره) کښت (فصل)، ساتلې شوې ده (له کارونو، عیبونو، یا له نورو رنګونو) نشته هیڅ یو داغ په رنګ ددې کې.

تفسیر: یعني په اعضاوو کې یې هیڅ نقصان نشته، او په رنګ کې یې د بل کوم رنګ هیڅ یو داغ او خال نشته، بلکه تکه زېړه ده.

قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧١﴾

وویل (بني اسرائیلو موسی ته چې) اوس دې راوړه روښانه خبره، نو حلاله کړه دوی هغه غوا، او نه وو نږدې دوی (دې خبرې ته) چې دا کار به یې کړی وی. (دقیمت له ډېروالي یا د قاتل د پیدا کېدو له شرمه).

تفسیر: دا غوا د داسې یوه نېکبخت سړي وه، چې دخپلې مور خدمت به یې زیات کاوه، خلقو هغه غوا له ده نه په دومره سرو زرو سره واخیسته، چې دهغې غوا په پوستکي کې ځائیدل، او بیا یې حلاله کړه، دوی داسې نه ګڼل چې دا غوا به په دومره ګران قیمت سره په لاس راځي، او که پوهیدلي وای نو نږدې وو چې لاس یې ترې نه اخیستی وای.

وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا ۖ وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنتُمْ تَكْتُمُونَ ﴿٧٢﴾

او (یاد کړئ !) هغه وخت چې مړ کړ (پلرونو) ستاسې یو سړی نو په جګړه شوئ په هغه (مقتول) کې، او الله ښکاره کوونکی دی د هغه شي چې وئ تاسې چې پټاوه به مو هغه (قتل).

تفسیر: یعنی ستاسې پلرونو یو سړی وژلئ وو، بیا یې د هغه وژل یو په بل اړول، او هغه شی چې تاسې پټاوه یعنې ایماني ضعف یا د وژونکي احوال؛ الله تعالی درښکاره کړ.

فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ؕ

نو وویل مونږ چې: ووهئ دا مړي په یوې پوټې د غوا (بیا ژوندی شو هغه مقتول)

تفسیر: یعنې کله چې یې د هغې غوا یوه ټوټه غوښه په هغه مړي ووهله، هغه مړی د پاک الله په حکم ژوندی شو، او وینې د هغه له پرهارونو وبهېدې، او د خپل وژونکي نوم یې وروښود چې د هماغه مقتول وریرونه وو، او د خپل تره د مال او میراث په تمه یې په بیدیا (صحراء) کې هغه وژلی وو، وروسته له هغه چې ژوندی شو، او خپل قاتلان یې وښودل، بېرته ولوېد او مړ شو.

كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۳﴾

همداسې (لکه چې دغه مړی یې ژوندی کړ) ژوندي کوي الله مړي (په قیامت کې) او درښیي تاسې تـه آیتونه د (قدرت) خپل لپاره ددې چې تاسې غور وکړئ.

تفسیر: یعنې همداسې چې هغه مقتول یې ژوندی کړ، الله تعالی په خپل کامل قدرت د قیامت په ورځ کې ټول خلق هم ژوندي کـوي، او دخپل کامـل قـدرت آیتونه تاسې ته درښیي، څو تاسې غور و کړئ او وپوهیږئ چې پاک الله مړي هم ژوندي کولی شي.

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً ۭ وَاِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْاَنْهٰرُ ۭ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاۗءُ ۭ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ ۭ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۷۴﴾

بیا سخت شول زړونه ستاسې پس له دغه (ژوندي کولو د مړي) نو دغه (زړونه) په مثال دتیږې دي (په سختوالي کې) بلکه ډېر زیات دي په سختوالي کې، او بېشکه چې له ځینو تیږو ځنې خامخا هغه دي چې خوټیږي (بهیږي) له هغو څخه لویې لویې ویالې، او په تحقیق سره ځینې له دې تیږو څخه خامخا هغه دي؛ چې چوي نو راوځي له هغو څخه اوبه، او بېشکه ځینې له دې تیږو څخه خامخا هغه دي؛ چې رارغړي (دغره له سره) له وېرې د الله، او نه دی الله بې خبره له هغه څه چې کوئ یې تاسې (ای یهودانو !).

تفسیر: یعنې له ځینو تیږو څخه ډېرې ګټې رسیږي، چې ډېرې اوبه او ویالې ور څخه وځي، او له ځینو تیږو څخه لږ اوبه وځي، او د هغه لومړني قسم په نسبت لږه فائده ور څخه اخیستل کیږي، که څه هم له ځینو تیږو څخه چاته څه فائده نه رسیږي، خو په هغو کې یو ځانته اثر او تأثر موجود وي، مګر د دوی زړونه له دې درې ډولو تیږو څخه سخت دي، نه په هغو کې فائده او نه په کې د خیر کومه خبره شته، ای یهودانو ! الله تعالی ستاسې له اعمالو څخه هیڅکله بېخبره نه دی.

اَفَتَطْمَعُوْنَ اَنْ يُّؤْمِنُوْا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُوْنَ كَلٰمَ اللّٰهِ ثُمَّ يُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۷۵﴾

آیا نو تمه کوئ تاسې (ای مسلمانانو) چې ایمان به راوړي دوی (په وینا ستاسو او بېشکه چې وه

يوه ډله (دپخوانيو) له دوی چې اورېده به يې كلام د الله، بيا به يې اړوله هغه خبره وروسته له هغه چې پوه به شول په هغې؛ حال دا چې دوی به پوهېدل (په دی تحريف او افتراء).

تفسير: له فريق څخه هغه خلق مراد دي چې د طور غره ته له موسی عليه السلام سره د الله تعالی د خبرو د اورېدلو لپاره تللي وو، هغوی د طور څخه د بېرته راتګ په وخت كې له ځانه داسې خبرې تحريف او جوړې كړې، او ويې ويل: «څه چې مو له لاسه كيږي هغه وكړئ! او په څه چې مو وس نه رسيږي د هغه پرېښودل ستاسې په اختيار كې دي»، ځينې وايي چې: الله تعالی د كلام څخه مراد (تورات) دی، او له تحريف څخه دا مراد دی چې د هغه په آياتو كې به يې لفظي او معنوي تحريفونه كول، كله به يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم نعت بدلاوه، كله به يې د رجم او نور آيتونه له منځه ايستل.

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ عِندَ رَبِّكُمْ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۷۶﴾

او كله چې ملاقات وكړي (يهودان) له هغو كسانو سره چې مؤمنان دي، وايي چې: ايمان راوړی دی مونږ، او كله چې يواځې شي ځينې د دوی له ځينو نورو سره نو وايي دوی: آيا خبروئ تاسې (ای يهودانو) مؤمنان په هغه شي چې پرانستلی دی الله په تاسې (په تورات كې) ددې لپاره چې جګړه وكړي له تاسې سره مؤمنان په نزد د پروردګار ستاسې، آيا نو نه پوهېږئ؟ (په دې چې دښمن ته حجت وربښيئ).

تفسير: د يهودانو منافقانو به د خوشامند په توګه د رسول اكرم صلی الله عليه وسلم هغه خبرې چې د دوی په مذهبي كتاب كې وې، مسلمانانو ته ويلې، نورو يهودانو به دوی ملامتول چې «د خپل كتاب سند ولې د نورو په لاسو كې وركوئ؟ آيا تاسې نه پوهېږئ چې مسلمانان به ستاسې د پروردګار په مخ كې په همدې خبرو پر تاسې الزام اړوي؛ چې يهودان سره له دې چې ګرد سره آخر الزمان رسول الله صلی الله عليه وسلم پيژني، خو بيا هم ايمان نه راوړي، نو دلته تاسې بې ځوابه كېږئ».

أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿۷۷﴾

آيا نه پوهيږي دغه (يهودان) چې بېشكه الله تعالی عالم دي په هغه څه (كفر او نفاق) چې پټوي يې دوی، او په هغه څه (ايمان) چې ښكاره كوي يې.

تفسير: يعنی الله تعالی ته د دوی ټول ظاهري او باطني احوال معلوم دي، او د دوی د كتاب له ګردو حجتو څخه خبر وركوي، او وخت په وخت هغوی پرې پوهوي، د رجم آيت اهل كتابو له مسلمانانو څخه پټ كړی وو، خو الله تعالی هغه مسلمانانو ته ورښكاره كړ، او دوی يې رسوا كړل، دا د هغوی د پوهانو او عالمانو حال وو چې له ټولو نه پوه او د كتاب د لوستلو مدعيان وو.

وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتَابَ إِلَّا أَمَانِيَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَظُنُّونَ ﴿۷۸﴾

او ځينې له دغو (يهودانو) څخه آميان دي، چې نه پوهيږي په كتاب (تورات) باندې مګر خو (پوهيږي) په هيلو (آرزوګانو) د خپلو نفسونو او نه دي دوی مګر خو بې دليله ګمان كوي.

تفسير: او هغه كسان چې جاهلان دي، هغوی خو په هيڅ نه پوهيږي چې په (تورات) كې څه شی ليكل شوي دي؟

مګر په هغو څو آرزوګانو خبر دي؛ چې له خپلو پوهانو څخه يې په دروغو اورېدلي دي، لکه چې وايي: جنت ته به بې له يهودانو بل څوک نه ورننوځي، ځمونږ پلرونه او نيکونه هرومرو (خامخا) ځمونږ لپاره مغفرت غواړي، دا د هغوی هسې بې اصله خيالات دي چې هيڅ دليل ورته نه لري.

فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ يَكْتُبُونَ الْكِتَـٰبَ بِأَيْدِيهِمْ ثُمَّ يَقُولُونَ هَـٰذَا مِنْ عِندِ اللَّهِ لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۖ فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا يَكْسِبُونَ ﴿٧٩﴾

نو عذاب (هلاک او خرابي) دی لپاره د هغو کسانو چې ليکي کتاب (له خپله ځانه) په لاسو خپلو بيا وايي دغه (محرفين خلقو ته) چې دا (ليکل شوي) له طرفه د الله دي، لپاره ددې چې واخلي په دغه کتاب (اړولي) ليک قيمت لږ، نو (عذاب او) خرابي ده دوی ته له سببه د هغه شي چې ليکلي دي لاسونو د دوی او بيا خرابي ده دوی ته له سببه د هغه کار چې کوي يې (چې رشوت اخيستل دي).

تفسير: دا هغه کسان دي چې هغوي د عوامو جاهلانو په مذاق او خوښه سره سمې خبرې له خپل لوري جوړوي، ليکي يې، او الله تعالی ته يې نسبت کوي، مثلا په (تورات) کې ليکلي وو چې «آخر الزمان رسول صلی الله عليه وسلم ښکلی مخ، تکې تورې ګڼې ولول تاو شوې څڼې، تورې سترګې، ميانه قد، غنم رنګ لري»، دوی دا خبرې واړولې او داسې يې وليکل چې: «قد يې اوږد، سترګې يې شنې، او څڼې يې ساده، سمې او ځوړندې او زېړې دي»، چې عوام الناس د ده تصديق ونه کړي، او د هغوی په دنيوي منافعو کې څه نقصان پيدا نه شي.

وَقَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَةً ۚ

او وايي دوی (يعنې يهودان) هيچېرې به ونه رسيږي مونږ ته اور د (دوزخ) مګر څو ورځې شميرلې شوې (لږې).

تفسير: ځيني وايي: اوه ورځې، او ځيني څلويښت ورځې؛ هومره ورځې چې دوی د خوسي (سخي) په عبادت کې بوخت وو، او ځيني څلويښت کاله؛ هومره وخت چې دوی د تيه په ميدان کې سرګردان وو، ځيني وايي: هر يوه ته دومره وخت اور رسيږي، چې په دنيا کې يې ژوند کړی وي.

قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِندَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ ۖ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٠﴾

ووايه ته (ای محمده ! دوی ته) آيا اخيستی دی تاسې په نزد د الله عهد (چې عذاب به نه درکوي؟) نو له سره مخالفت نه کوي الله له عهد خپل، يا وايئ (او جوړوئ) په الله هغه (دروغ) خبره چې نه پرې پوهېږئ (بلکه داسې نه دي لکه چې تاسې يې وايئ).

تفسير: يعنې دا خبره بيخي غلطه ده چې يهودان به تل په دوزخ کې نه پاتې کيږي، ځکه د «خلود في النار» او «دخول في الجنة» هغه کليه قاعده چې وروسته له دې څخه يې بيان فرمايي؛ له ټولو سره به سم له هغې قاعدې سره معامله کيږي، او يهودان له دغې عمومي قاعدې نشي وتلی.

بَلَىٰ مَن كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ فَأُولَـٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٨١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَـٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٨٢﴾ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي

إِسْرَآءِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا اللّٰهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ
وَقُولُوا لِلنَّاسِ حُسْنًا وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ
وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ﴿٨٣﴾

بلکه (رسیږي تاسي ته دائمي اور) هر چا چې کسب کړه بدي او چاپېره شوه پر ده ګناه دده (چې تر مرګه پورې کفر دی) نو همدغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي، دوی به په هغه اور (د دوزخ) کې تل وي.

او هغه کسان چې مؤمنان دي، او عملونه کړي دي دوی د نیکۍ؛ همدغه کسان صاحبان د جنت دي، دوی به په هغه جنت کې تل وي.

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې واخیست مونږ عهد محکم له بني اسرائیلو (اولاده د یعقوب او وویل مونږ دوی ته) چې عبادت مه کوئ ! مګر یوائې د الله او (نیکي کوئ) سره له مور او پلار نیکي ! او له خپلوانو سره، او له یتیمانو سره ! او له مسکینانو سره ! او ووایئ خلقو ته (ښې خوږې) ښایسته خبرې، او سم قائموئ لمونځ ! (ادا کوئ یې د ټولو مقرراتو له رعایت سره) او ورکوئ زکات ! بیا وګرځېدئ تاسې (له دې عهده) مګر (ونه ګرځېدل) لږ له تاسې څخه حال دا چې همدا تاسې مخ ګرځوونکي یئ (له الهي احکامو نه).

تفسیر: د ګناه احاطه کول یا له چا ځنې چار چاپېر ګناه تاوېدل دا معنې لري چې: ګناه په هغه داسې غلبه وکړي چې هیڅ خوا یې داسې نه وي؛ چې ګناه هلته انبار نه وي، تر دې که یوائې د چا په زړه کې د ایمان او تصدیق لږ اثر وي، هم ګناه په هغه احاطه نه کوي، نو دا صورت یوائې په کافرانو صادق کېدی شي، او بس.

یهودو ته خطاب جاري دی؛ چې له الهي احکامو څخه اعراض او مخ اړول، ستاسې عادت بلکه په طبیعت کې داخل شوی دی.

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَاءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُونَ أَنفُسَكُم مِّن دِيَارِكُمْ ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ
وَأَنتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿٨٤﴾

او (یاد کړئ ای بني اسرائیلو) هغه وخت چې واخیست مونږ عهد محکم له (پلرونو) ستاسې په (تورات) چې مه تویوئ وینې خیلی او مه باسئ ځانونه خپل (یعني یو بل په ظلم سره) له کورو خپلو، بیا عهد وکړ (پلرونو) ستاسې حال دا چې تاسې شاهدان یئ (په خپلو نفسونو په دې چې عهد تړلی وو پلرونو ستاسې او همدا مو دین دی).

تفسیر: یعنی مه خپل قوم وژنئ، او مه یې له وطنه د باندې شړئ.

ثُمَّ أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ تَقْتُلُونَ أَنفُسَكُمْ وَتُخْرِجُونَ فَرِيقًا مِّنكُم مِّن دِيَارِهِمْ تَظَاهَرُونَ عَلَيْهِم
بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

پس (له دې عهده) تاسې هغه کسان یئ چې وژنئ ځانونه خپل (یو بل سره یا وژنئ غریبان اقرباء خپل) او وباسئ تاسې یوه ډله خپله (چې مغلوبه شي) له کورونو د دوی څخه، مرسته (مدد) کوئ یو له بل سره په دوی باندې په ګناه او ظلم.

**تفسير:** په مدينه منوره کې د يهودانو دوه فرقې وې، يوه (بني قريظه)، دويمه (بني نضير)، دوی يو له بل سره جنګېدلې، د مشرکانو هم هلته دوه ډلې وې، يوه (اوس) دويمه (خزرج)، دې دواړو به هم په خپلو منځو کې جګړې کولې، د(بني قريظه) ملګري د (اوس) ټبر وو، او د (بني نضير) ملګري د (خزرج) ټبر وو، د جنګ جګړو په وخت کې هره يوه ډله د بلې موافقې ډلې مرستې ته ورتله، او د هغې اعانت او حمايت به يې کاوه، کله به چې يوې ډلې پر بلې ډلې نصرت او برې وموند، نو هغه مغلوبه ډله به يې له وطنه د باندې شړله، او د هغو کورونه به يې لوټل، که کوم (کتابي، يهودي) سړی به دوی ته په دې جګړو کې په لاس ورته؛ بندي کېده به، نو د هغه ملګرو به پيسې سره ټولولې او بسپنه (فديه) به يې کوله، او هغه به يې له بنده خلاصاوه، لکه چې ددې کيفيت او چارې په نسبت په لاندنې آيت کې څه اشاره راځي.

وَاِنۡ يَّاۡتُوۡكُمۡ اُسٰرٰى تُفٰدُوۡهُمۡ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيۡكُمۡ اِخۡرَاجُهُمۡ‌ؕ اَفَتُؤۡمِنُوۡنَ بِبَعۡضِ الۡكِتٰبِ وَتَكۡفُرُوۡنَ بِبَعۡضٍ‌ۚ

او که راشي دوی تاسې ته بنديان نو فديه ورکوئ تاسې د دوی په ځای، شان دا چې حرام کړی شوی دی پر تاسې ايستل د هغو، آيا پس (منئ او) ايمان راوړئ تاسې پر ځينو (احکامو) د کتاب (چې فديه ده) او کافران کېږئ په ځينو نورو (احکامو د کتاب چې بې ګناه وژنئ، په ګناه سره مرسته کوئ، د دوی مغلوبان له وطنه شړئ).

**تفسير:** يعنې که د بل ټبر او قوم په لاس کې بندي شئ، نو د هغه په خلاصولو کې په ډېره مېړانه (بهادرۍ) ټول سره ولاړ يږئ، او ملاوې تړئ، مګر په خپله د هغه د وينې د څښبلو او مرئ غوڅولو لپاره شنه ناست يئ، نو که غواړئ چې د الله تعالی په احکامو باندې عمل او ټنګ وکړئ، ښايي چې په دواړو ځايو کې له هغه سره معاونت او مرحمت وکړئ، او د هغه له اعانت او حمايت څخه سر ونه غړوئ !.

فَمَا جَزَآءُ مَنۡ يَّفۡعَلُ ذٰ لِكَ مِنۡكُمۡ اِلَّا خِزۡىٌ فِى الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا ‌ۚ وَيَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ يُرَدُّوۡنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الۡعَذَابِ‌ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ‏ ﴿۸۵﴾

پس نه ده سزا د هغه چا چې کوي دا (کارونه) له تاسې څخه مګر خو رسوايي ده، په ژوند د دنيا کې، او په ورځ د قيامت کې ګرځول کيږي دوی ډېر سخت عذاب (د دوزخ) ته او نه دی الله غافل له هغه څه چې کوئ يې تاسې (ای يهودانو !).

اُولٰٓـئِكَ الَّذِيۡنَ اشۡتَرَوُا الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا بِالۡاٰخِرَةِ‌ فَلَا يُخَفَّفُ عَنۡهُمُ الۡعَذَابُ وَلَا هُمۡ يُنۡصَرُوۡنَ‏ ﴿۸۶﴾

دا هغه کسان دي چې آخيستي دی دوی ژوند د دنيا په (بې انتها نعمتونو) دآخرت، سپک به نه کړی شي له دوی څخه (دنيوي او اخروي) عذاب، او نه به له دوی سره مرسته وکړی شي (په دفع د عذاب کې).

وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ وَقَفَّيۡنَا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ بِالرُّسُلِ‌ وَاٰتَيۡنَا عِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ الۡبَيِّنٰتِ وَاَيَّدۡنٰهُ بِرُوۡحِ الۡقُدُسِ‌ؕ

او خامخا، بېشکه ورکړی وو مونږ موسی ته کتاب (تورات)، او پر له پسې استولي وو مونږ پس له موسی نور رسولان (لکه يوشع، داود، سليمان، يحيی، او زکريا)، او ورکړې وې مونږ عيسی

ځوی د مریمې ته (معجزې) ښکاره او قوي کړی وو مونږ عیسی په روح پاک سره (چې جبریل یا انجیل یا عیسوي روح دی).

تفسیر: د مړي ژوندي کول، د أکمه، او أبرص او د نورو رنځورانو روغول، او دېتو خبرو ښوول، د عیسی علیه السلام له ښکاره وو معجزاتو څخه دي، له (روح القدس) څه به جبرئیل علیه السلام مراد وي، چې تل به له مسیح علیه السلام سره وو.

أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ ﴿٨٧﴾

آیا نو هر کله چې را به غی تاسې ته کوم رسول په هغو احکامو سره چې نه به خوښول نفسونو ستاسې، نو تکبر (لویي) کاوه تاسې (له منلو د هغو احکامو) نو د انبیاوو یوه ډله دروغجنه وبلله تاسې (لکه محمد، عیسی، او موسی)، او بله ډله (دانبیاوو) ووژله تاسې.

وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۚ بَل لَّعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

او وايي (تمسخراً) زړونه مو په پردو کې دي (وینا پرې اثر نه کوي، داسې نه ده) بلکه لعنت کړی دی پر دوی الله په سبب د کفر ددوی، نو ډېر لږ (له دوی څخه) ایمان راوړي.

تفسیر: یهودانو دخپلو نفسونو د ستایلو په وخت کې داسې ویل چې: څمونږ زړونه په غلافو او کڅوړو کې ساتلی شوي دي، او پرته څمونږ له دین څخه بل کوم دین په کې نشي ننوتلی، او نه بله کومه خبره څه اثر وربانديې اچولی شي، مونږ د بل چا په چاپلوسی، سحر بیانی، او کرشمی نه غولیږو، او نه یې تابعداري کولی شو، حق تعالی فرمایي: «دوی بیخي دروغ ویونکي دي» څکه چې دوی دخپل کفرپه سبب الله تعالی له خوا ملعون او د ده له رحمته شړل شوي دي، نو له دې امله په هیڅ ډول د حق منونکي نه دي، او له دوی څخه ډېر لږ کسان د ایمان په دولت مشرف کیږي.

وَلَمَّا جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا مِن قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَاءَهُم مَّا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ ۚ فَلَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٨٩﴾

او هر کله چې راغی دوی ته (اهل کتابو ته) کتاب (قرآن) له طرفه د الله، چې مصدق دی د هغه کتاب چې له دوی سره دی، حال دا چې وو دوی پخوا له دې چې فتح به یې غوښته (له الله دقرآن او محمد په راتلو سره) په هغو کسانو چې کافران وو، نو کله چې راغی دوی ته هغه رسول چې پیژندلی وو دوی (هغه رسول د تورات په ستایلو سره) کافران شول پرې، نو لعنت د الله دی په کافرانو (چې حق یې پټ او باطل یې څرګند کړ).

تفسیر: هغه کتاب چې نازل شوی دی قرآن دی، او هغه کتاب چې له دوی سره پخوا له دی نه موجود وو (تورات) دی، د عظیم الشان قرآن له نزوله پخوا کله به چې یهودان د کافرانو په مقابل کې مغلوبېدل، نو دعا به یې کوله، او ویل به یې: ای الله، آخر الزمان نبي صلی الله علیه وسلم مبعوث کړه چې مونږ د هغه ملګري شو، او مشرکین مړه کړو او ..

او یا دا چې دوی به مشرکانو ته ویل: چې آخر الزمان رسول مبعوث شي، نو مونږ به د هغه ملګري او په تاسو به غالب شو، کله چې محمد صلی الله علیه وسلم مبعوث شو او د هغه د رسالت ټولې نښې یې ولیدلې، نو ترې منکر او ملعون شول.

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖۤ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ

بد دی هغه څه چې پلورلی (خرڅ کړي) دي دوی په هغه سره ځانونه خپل، (او هغه دا دی) چې کافران کيږي په هغه قرآن چې نازل کړی دی الله، (دا کفر) په سبب ددې حسد او کينې دی، چې (ولې) نازلوي الله له فضله خپله په هغه چا چې اراده وکړي له بندګانو خپلو.

تفسير: يعنې هغه شی چې دوی د هغه په بدل کې خپل ځانونه خرڅوي؛ هغه د سپيځلي پاک قرآن په مقابل کې د کفر او انکار غوره کول دي، حال دا چې د دوی دا کفر او انکار هم يواځې د دوی له ضد، کينې، او حسد نه پيدا شوی دی.

فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ؕ

نو اخته شول په يوه غضب (چې کفر دی په محمد او قرآن) له پاسه د بل غضب (چې کفر دی په عيسی او انجيل).

تفسير: يعنې غضب دا چې نه يواځې په قرآن، بلکه په خپل کتاب هم سره کافران او منکران شول، او بل غضب دا چې يواځې د حسد او ضد له امله يې د هغه وخت له رسول سره مخالفت وکړ، او ورځنې وګرځېدل.

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۹۰﴾

او (مقرر) دی لپاره د کافرانو عذاب سپکوونکی.

تفسير: له دې څخه معلوميږي چې هر عذاب د ذلت لپاره نه وي، بلکه هغه عذاب چې مسلمانانو ته ورکول کيږي، هغه د دوی د ګناهونو له امله دی؛ چې ترې پاک شي، نه د سپکتيا او تذليل لپاره، يواځې هغه عذاب چې کفارو ته ورکول کيږي هغه د تذليل عذاب دی.

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ ۗ وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ؕ

او کله چې وويل شي دوی ته چې ايمان راوړئ په هغو (کتابونو) چې نازل کړي دي الله، وايي دوی: ايمان راوړو مونږ په هغه (کتاب) چې نازل کړی شوی دی پر مونږ (يعنې تورات) حال دا چې کافران کيږي په هغو کتابونو چې بې له هغه دي (يعنې انجيل او قرآن) حال دا چې دا (نور کتابونه هم) حق دي، تصديق کوونکي دي د هغه کتاب چې له دوی سره دی (چې د الله تعالی له خوا نازل شوی دی).

تفسير: هغه کتابونه چې بې له هغه دي، يعنې (انجيل) او (قرآن)، او هغه چې نازل شوی دی پر مونږ يعنی (تورات)، مطلب دا چې پرته له (تورات) څخه له نورو کتابونو په ښکاره ډول منکران دي، د(قرآن) او (انجيل) منونکي نه دي، حال دا چې دا کتابونه هم رښتيا حق او د (تورات) تصديق کوونکي دي.

قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۹۱﴾

ووايه (ای محمده ! دغو يهودانو ته) نو ولې به وژل تاسې انبياء د الله (لکه شعيب، زکريا، او يحيی) پخوا (له دې څخه) که چېرې وئ تاسې ايمان لرونکي (په تورات).

تفسیر: یعني یهودانو ته ووایه: «که تاسې په تورات ایمان لرونکي یئ، نو بیا مو ولې انبیاء ووژل؟ ځکه چې په (تورات) کې داسې حکم شته: «هر هغه نبي چې د (تورات) تصدیق وکړي، تاسې له هغه سره مرسته وکړئ، او خامخا وربانديې ایمان راوړئ !» او هغه انبیاء مو وژلي دي؛ چې پخوا له دې څخه تېر شوي دي، لکه زکریا او یحیی علیهما السلام، چې د (تورات) په احکامو یې عمل کاوه، او د (تورات) د ترویج او تاکید لپاره رالېږل شوي وو، په دې خبره کې هیڅ ناپوه ته کومه اندېښنه او شک نه پیدا کیږي، چې دې پیغمبرانو د (تورات) تصدیق کاوه.

وَلَقَدۡ جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِٱلۡبَيِّنَٰتِ ثُمَّ ٱتَّخَذۡتُمُ ٱلۡعِجۡلَ مِنۢ بَعۡدِهِۦ وَأَنتُمۡ ظَٰلِمُونَ ﴿٩٢﴾

او خامخا په تحقیق سره راوړې وې تاسې ته موسی ښکاره (معجزې) بیا ونیوه تاسې خوسی (سخی) (په ألوهیت او معبودیت سره) پس د تللو د موسی (د طور غره ته) حال دا چې تاسې وئ ظالمان (پر ځانونو خپلو په دې معبود نیولو دخوسي).

تفسیر: یعني پخپله موسی علیه السلام چې تاسې د هغه د شریعت دعوه لرونکي یاست، ددغې دعوا له امله د نورو شرائعو او حقه وو ادیانو څخه انکار کوئ، تاسو ته یې ډېرې ښکاره نښې او معجزې دروښودې، لکه همسا، ید بیضاء، د سیند څیرول او نور؛ مګر کله چې موسی علیه السلام د څو ورځو لپاره د طور غره ته لاړ، نو تاسې د هغه په غیاب کې خوسی (سخی) خپل معبود وټاکه، حال دا چې موسی علیه السلام ژوندی او دنبوت خاوند وو، نو په هغه وخت کې پر موسی علیه السلام او د هغه په شریعت ستاسې ایمان چېرې وو، چې نن آخر الزمان رسول صلی الله علیه وسلم سره د بغض، او حسد له امله تاسې موسوي شریعت داسې ټینګ نیولی دی، چې د الله تعالی احکامو ته هم غوږ نه ږدئ، بېشکه چې تاسې ظالمان یئ، او ستاسې پلرونه او نیکونه هم ظالمان وو، دا وو د بني اسرائیلو احوال د موسي علیه السلام سره، وروسته له دې د (تورات) په نسبت د هغوی د ایمان حالت بیانوي.

وَإِذۡ أَخَذۡنَا مِيثَٰقَكُمۡ وَرَفَعۡنَا فَوۡقَكُمُ ٱلطُّورَ خُذُواْ مَآ ءَاتَيۡنَٰكُم بِقُوَّةٖ وَٱسۡمَعُواْۖ
قَالُواْ سَمِعۡنَا وَعَصَيۡنَا وَأُشۡرِبُواْ فِي قُلُوبِهِمُ ٱلۡعِجۡلَ بِكُفۡرِهِمۡۚ قُلۡ بِئۡسَمَا
يَأۡمُرُكُم بِهِۦٓ إِيمَٰنُكُمۡ إِن كُنتُم مُّؤۡمِنِينَ ﴿٩٣﴾

او (یاد کړئ) هغه وخت چې واخیست مونږ عهد محکم دتاسې (په منلو د تورات) او پورته کړ مونږ پاس په (سرو) د تاسې د طور (غراو حکم مو ورته وکړ چه)، واخلئ هغه (احکام) چې درکړي دي مونږ تاسې ته په ښه کوښښ، او واورئ (په تدبر سره)، وویل (یهودانو) اورېدلې ده مونږ (ستا خبره) او نه دی منلی مونږ(ستا حکم)، او ورڅښلې شوې وه په زړونو ددوی کې (مینه د) خوسي (سخي) په سبب دکفر ددوی، ووایه (ای محمده ! دوی ته) بد دی هغه شی چې امر کوي تاسې ته په هغه (چې کفر دی په محمد او قرآن) ایمان ستاسې که چېرې یئ تاسې ایمان لرونکي.

تفسیر: یعنی د (تورات) د احکامو په نسبت چې کوم احکام درکړی شوي دي، هغه په پوره همت او استقلال سره ټینګ ونیسئ !، څرنګه چې غر مو په سر څوړند وو، نو د خپل ځان له وېرې خو مو تش په ژبه یا په هغه وخت کې وویل: ﴿سَمِعۡنَا﴾ یعنې د (تورات) احکام مو واورېدل، او په زړه کې یا وروسته له هغه مو ویل: ﴿وَعَصَيۡنَا﴾ یعنې هغه احکام مو ونه منل.

قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٩٤﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) كه چېرې وي تاسې ته دار آخرتى په نزد د الله په خلوص (او خصوص سره يواځې) بې له (نورو) خلقو نو تمنا وكړئ د مرګ كه چېرې يئ تاسې صادقان (په دعوى د خالصوالي د جنت كې خپلو ځانو ته).

**تفسير:** يهودانو به ويل: «پر ته له مونږ به جنت ته بل هيڅ څوك نه داخليږي، او مونږ ته هيڅ يو تكليف او عذاب نشته»، الله تعالى فرمايي: «كه په رښتيا سره تاسې جنتيان يئ، نو له مړينې څخه ولې وېرېږئ؟».

وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٩٥﴾ وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَاةٍ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا ۚ يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهِ مِنَ الْعَذَابِ أَن يُعَمَّرَ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾

او له سره به هيله (اميد) ونه كړي د مرګ هيڅكله په سبب د هغو عملونو چې وړاندې ليږلي دي لاسونو ددوى (لكه د انبياوو او نورو قتل او تكذيب) او الله ښه عالم دى په (احوالو) دظالمانو.
او خامخا به مومې ته هرومرو دوى ډېر حرصناك دخلقو نه په ژوندانه باندې، او (ډېر حارصان) له هغو كسانو څخه (هم) چې مشركان دي، خوښوي هر يو د هغوى (يهودانو) كه عمر وركړى شي (او اوږد شي عمر يې) زر كاله، او نه دى دا كس خلاصوونكى دده له عذابه دا چې عمر ډېر وركړ شي، او الله ښه ليدونكى دى دهر څه چې دوى يې كوي.

**تفسير:** يعني يهودانو داسې خراب كارونه كړي دي چې له مرګه ډېر لرې تښتي، او وېرېږي چې وروسته له مړينې مونږ ته هيڅ يوه ګټه نه رسيږي، تر دې حده پورې چې له مشركانو څخه هم دوى ډېر په ژوندې پاتې كيدلو باندې حريصان دي، په دې سره د هغوى د دعوى تغليط په ښه ډول سره وشو.

قُلْ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَىٰ قَلْبِكَ بِإِذْنِ اللَّهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٩٧﴾ مَن كَانَ عَدُوًّا لِّلَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَرُسُلِهِ وَجِبْرِيلَ وَمِيكَالَ فَإِنَّ اللَّهَ عَدُوٌّ لِّلْكَافِرِينَ ﴿٩٨﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) هر څوك چې وي دښمن د جبريل (نو مړه دې شي له قهره) ځكه چې بېشكه هغه (جبريل) نازل كړى دى قرآن په زړه ستا په اذن (او حكم) د الله، حال دا چې تصديق كوونكى دى (دا كتاب) د هغو كتابونو چې پخوا له ده دي، (لكه تورات، او انجيل) او لارښوونكى دى، او زېرى وركوونكى دى مؤمنانو ته (په جنت او د الله په لقاء سره).
هر څوك چې وي دښمن د الله او دملائكو دده او درسولانو د ده او(خصوصا) د جبريل او د ميكائيل پس بېشكه الله دښمن دى د كافرانو.

**تفسير:** يهودانو به ويل: «هغه پرښته جبريل عليه السلام چې پر ( محمد صلى الله عليه وسلم) باندې وحي راوړي له مونږ سره دښمني لري، او څمونږ پلرونو ته دده له لاسه لوى تكليفونه پيښ شوي دي، كه پر ته له جبرئيل عليه السلام بلې كومې پرښتې دوى ته وحي راوړې وى، نو مونږ به په (محمد صلى الله عليه وسلم) ايمان راوړى واى»، نو د دوى ددې

وينا په نسبت الله تعالی داسې فرمايي: «کردي پرښتې همغه شيان کوي چې د پاک الله له لوري دوی پرې ماموري شوي وي، او له خپله ځانه هيڅ شی نه شي کولی، نو هغه کسان چې له دوی سره دښمني کوي، بېشکه چې الله تعالی د هغوی دښمن دی».

وَلَقَدْ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ ۖ وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ ﴿٩٩﴾ أَوَكُلَّمَا عَاهَدُوا عَهْدًا نَّبَذَهُ فَرِيقٌ مِّنْهُم ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٠﴾

او خامخا په تحقيق نازل کړي دي مونږ تاته آيتونه روښانه، او نه کافران کيږي په دې باندې مګر فاسقان (چې د الله له فرمانه وتونکي دي).
آيا هر کله چې کولو به دوی يو عهد؛ نو غورځاوه (هيراوه او ماتولو به) دا عهد يوې ډلې له دوی څخه، بلکه اکثره د دوی ايمان نه راوړي.

تفسير: يعني دا د هغوی پخوانی عادت دی؛ کله چې دوی له الله تعالی يا رسول الله صلی الله عليه وسلم يا له بل چا سره عهد او پيمان وتړي، نو بيا يوه ډله له دوی څخه له هغه عهد نه سترګې پټوي، او تر شا يې غورځوي، بلکه ډېر داسې يهودان هم شته چې په (تورات) باندې يې هم لا ايمان نه دی راوړی، نو داسې کسانو ته عهد ماتول او په خپلو خبرو باندې نه درېدل کومه سخته خبره نه ده.

وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ كِتَابَ اللَّهِ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾

او هر کله چې راغی دوی ته رسول (محمد) له طرفه د الله چې تصديق کوونکی دی د هغه کتاب (تورات) چې له دوی سره دی؛ نو وغورځاوه يوې ډلې له هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب؛ کتاب د الله لره وروسته د شاوو د دوی (او هيڅ عمل يې پرې ونه کړ) لکه چې دوی نه پوهيږي (چې دغه کتاب او رسول له جانبه د الله راغلي دي، يا په هغه کې څه صفت دی د محمد).

تفسير: له «رسول» څخه محمد صلی الله عليه وسلم مراد دی، او له «ما معهم» څخني مطلب (تورات) او له (کتاب الله) نه مقصد همدا (تورات) دی، يعني کله چې رسول الله صلی الله عليه وعلی آله وأصحابه وسلم تشريف راوړ، نو دوی د (تورات) او نورو آسماني کتابونو تصديق کوونکی وو، نو د يهودانو يوې ډلې په پخپله (تورات) خپلو شاوو ته داسې وغورځاوه لکه چې بيخي يې نه وي ليدلی، او هيڅ ورنه خبر نه وي؛ چې آيا هغه هم کوم کتاب دی که نه؟ او څه اوامر او نواهي هم پکې شته که نه؟ کله چې دوی په خپل کتاب عقيده او ايمان نه لري، نو له هغوی څخني د نورو الهي احکامو په نسبت څه اميد کول پکار دي؟.

وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُو الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ ۖ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَا أُنزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ ۚ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَا إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۖ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهِ ۚ وَمَا هُم بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَيَتَعَلَّمُونَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ ۚ وَلَقَدْ

عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ۗ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ۗ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ۗ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

او متابعت وکړ یهودانو د هغه څه چې لوست به شیطانانو په (زمانه د) باچاهۍ دسلیمان کې، او نه وو کافر شوی سلیمان، ولیکن شیطانان کافران شوي وو، حال دا چې ښوده به یې خلقو ته سحر او (متابعت به یې کاوه) د هغه شي چې نازل کړی شوی وو په دوو پرښتو په (ښار د) بابل کې (چې نوم د یوې) هاروت او (دبلې) ماروت (دی)؛ او نه به کوله ښودنه دوی دواړو هیچا ته تر هغه پورې چې وبه ویل دواړو: بېشکه همدا خبره ده چې مونږ ازمېښت یو (له جانبه د الله) نو مه کافر کېږه (په زده کولو د سحر) نو زده کاوه به هغوی له دوی دواړو نه هغه شی چې بیلتون به یې کاوه په هغه سره په منځ د مېړه (خاوند) او ښځې د هغه کې؛ او نه وو دوی ضرر رسوونکي په دغه سحر سره هیچا ته مګر په اذن (حکم) د الله سره؛ او زده کوي دوی (یعنې یهودان) هغه څه چې ضرر رسوي دوی ته او نفع نه رسوي دوی ته، او خامخا په تحقیق پوهېدل دوی چې خامخا هغه څوک چې اخلي (زده کوي) سحر؛ نشته ده لره په آخرت کې هیڅ برخه (دنیکۍ)؛ او خامخا ډېر بد دی هغه شی چې خرڅ کړی دی دوی په هغه شي سره (حصه د) ځانو خپلو که چېرې وای دوی چې پوهېدلی (په بد انجام د سحر نو نه به یې زده کاوه)، او که په تحقیق دوی ایمان راوړی وای، او پرهیز یې کړی وای (له سحر او له یهودیته) نو خامخا ثواب له طرفه د الله څخه ډېر غوره دی (له دې سحر او رشوت د تورات په تحریف)؛ که وای دوی چې پوهېدلی (په بهترۍ د «تورات» نو سحر به یې نه زده کاوه، او له پاک الله ځنې به وېرېدل، او له مناهیو به لرې ګرځېدل).

تفسیر: لنډه یې دا چې یهودانو دین او کتاب پرېښود، او د سحر، جادو، او کوډو تابع شول، او جادو له دوو خواوو په خلقو کې خور شو:

(۱) : د سلیمان علیه السلام په زمانه کې په دې سبب چې پیریانو او انسانانو ناسته او ولاړه سره درلوده، نو بنیادمانو له شیطانانو ځنې کوډې زده کولې، او دا به یې سلیمان علیه السلام ته منسوبولې؛ چې دا کوډې مونږ ته له ده ځنې رارسېدلې دي، او ده دهمدې کوډو په زور پر خلقو حکمونه چلول، نو ځکه الله تعالی فرمایي چې: «دا کار کفر دی، او د سلیمان نه دی».

(۲) (هاروت) او (ماروت) دوه پرښتې چې (بابل) په ښار کې د بنیادمانو په صورت اوسېدلې، او دوی ته د سحر او جادو علم ښه معلوم وو، د سحر هر طالب به چې دوی ته ورته، نو دوی به هغه ته نصیحت کاوه چې «سحر مه زده کوه ! چې د سحر له امله سړی کافر او ایمان ته یې زوالوررسیږي»، که سره له دغه نصیحته به دا د سحر طالب د سحر له زده کولو څخه لاس نه آخیست، نو یې ورښود، پاک الله د (هاروت او ماروت) په ذریعه د خپلو بندګانو آزموینه کوله، نو ځکه فرمایي چې: «له هسې علومو ځنې آخرت ته هیڅ یوه فائده نه رسیږي، بلکه ډېر نقصان رسوونکي دي، او په دنیا او آخرت کې پرته له نقصانه بل څه فائده په لاس نه ترې راځي، او بې د الله تعالی له حکم او ارادې هیڅ اثر نه پرې مرتبیږي، که دوی د دین علم او د کتاب علم زده کاوه، نو د دواړو دارینو اجر او ثواب به یې په برخه کېده، کله چې دین او کتاب یې پرېښود. ﴿خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ﴾ شول.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا ۗ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۰۴﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو) مه وایئ تاسې (لفظ د) «راعنا» (رسول

الله ته) او ووايئ (په ځای د «راعنا» لفظ د) «انظرنا»، او واورئ تاسې (حق د زړه په غوږو)، او شته دی لپاره د کافرانو عذاب دردناك (د دوزخ).

تفسير: يهودان به چې كله رسول الله مبارك په مجلس كې كېناستل او د دوی خبرې به يې اورېدلې، په ځينو خبرو به چې ښه نه پوهېدل، يا به يې نه اورېدلې؛ د هغو تحقيق به يې بيا په تكرار سره كاوه، او ويل به يې: ﴿رَٰعِنَا﴾، يعنې ځمونږ په لورې توجه وفرمايئ ! او رعايت مو وكړئ ! ددې كلمې د اورېدلو په اثر به كله كله مسلمانانو هم داسې ويل، نو پاك الله منع كوي چې داسې مه وايئ، او كه وايئ هم نو ﴿انظُرْنَا﴾ ووايئ، چې د هغه معنی هم همغه ده، او د خبرو د شروع څخه پوره متوجه اوسئ ! چې بيا پوښتنې ته محتاج نه شئ ! يهودانو دا خبره د فرېب او بد نيتی له امله ويله، او دا كلمه به يې په داسې ژوولې ژبه ادا كوله چې «راعينا» تورې به هم ترې وخوت، چې معنی يې آی ځمونږ شپونه ! ده، برسېره په دې د يهودانو په نزد ﴿رَٰعِنَا﴾ احمق او ناپوه معنی هم وركوي.

مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَن يُنَزَّلَ عَلَيْكُم مِّنْ خَيْرٍ مِّن رَّبِّكُمْ ۗ وَاللَّهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿١٠٥﴾

نه خوښوي (دوست نه ګڼي) هغه كسان چې كافران شوي دي له اهل كتابو څخه او (نه) له مشركانو څخه دا (خبره) چې نازل كړي شي په تاسې كومه ښه خبره (لكه وحي، نصرت) له ربه ستاسې (دكينې له مخې)، أو الله خاصوي په رحمت خپل سره هغه څوك چې اراده (يې) وكړي (دتخصيص په رحمت سره)، او الله خاوند د فضل ډېر لوی دی.

تفسير: يعنې كفار كه يهودان دي، كه د مكې مشركان؛ په دې نه دي خوشحال چې پاك قرآن په تاسې باندې نازل شوی دی، بلكه يهودانو داسې غوښتل او هيله يې درلوده، چې وروستی نبي صلى الله عليه وسلم په (بني اسرائيلو) كې مبعوث شي، او د مكې د مشركانو خوښه دا وه، چې د دوی له ټبره دې وي، مګر دا خو د الله تعالى لوی فضل او مرحمت دی؛ چې وروستی نبي صلى الله عليه وسلم يې ستاسې د اميانو په ټبر كې پيدا كړ.

مَا نَنسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا أَوْ مِثْلِهَا ۗ أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٠٦﴾

هغه چې منسوخ كوو مونږ له كوم آيته يا هېروو يې (له زړونو) د مؤمنانو څخه؛ نو راوړو بهتر له هغه (پخواني څخه په سهولت او كثرت د اجر كې) يا په مثل د هغه (په تكليف او ثواب كې)، آيا نه پوهېږې ته چې بېشكه الله په هر څه ښه قادر دی (نو راوړي بهتر له منسوخه يا د هغه په مثل)؟.

تفسير: دا هم د يهودانو پيغور دی، كله چې ستاسې په كتاب كې ځينې آيتونه منسوخ كيږي؛ نو وايي: «كه دا كتاب په رښتيا د پاك الله له لوري وي، نو كله چې الله تعالى دهغې نسخې له سببه چې مونږ او تاسې اوس پرې خبرېږو ؛ لا له پخوا څخه خبر وو؛ نو ولې به يې يو داسې آيت لېږه؟» نو الله تعالى فرمايي چې: نه په لومړنی خبره كې څه عيب وو، او نه په وروستی خبره كې كوم عيب شته، خو ﴿أَحْكَمُ الْحَٰكِمِينَ﴾ د وخت په تناسب او ل هغه حكم مناسب و ګڼه، او بيا يې دغه حكم لازم وباله (وګڼه).

أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۗ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١٠٧﴾

آيا نه پوهېږې ته چې بېشكه الله (چې دی) همده لره دی سلطنت (او پاچاهي) د آسمانونو او دځمكې (سره له آسمانونو او ځمكې و ما فيهما ملكا، خلقا، وعبيدا)، او نشته تاسې ته غير له الله نه هيڅ دوست؛ (چې ومو ساتي له بلياتو) او نه مددګار (چې له نازله عذاب مو خلاص كړي).

تفسیر: یعنې دلته خو د الله تعالی قدرت او ملکیت په ګردو باندې شامل دی، او هلته په خپلو بندګانو اعلی درجه عنایت او مرحمت لري، نو اوس دبندګانو په منافعو او مصالحو باندې غیر دده له ذاته بل څوک پوهېدی شي؟ او څوک دده په اندازه بندګانو ته منافع او ښېګڼې رسولی شي؟.

اَمۡ تُرِيۡدُوۡنَ اَنۡ تَسۡـَٔلُوۡا رَسُوۡلَكُمۡ كَمَا سُئِلَ مُوۡسٰى مِنۡ قَبۡلُ‌ؕ وَمَنۡ يَّتَبَدَّلِ الۡكُفۡرَ بِالۡاِيۡمَانِ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ ﴿١٠٨﴾

آیا اراده لرئ تاسې چې سوال و کړئ له رسول خپله (محمد څني) لکه چې سوال کړی شوی وو له موسی څخه پخوا له دې (راز راز نا مناسبو طریقو)، او هر څوک چې بدلوي (او غوره کوي) کفر په ایمان (چې ایمان ورکوي او کفر اخلي)؛ نو په تحقیق ورکه یې کړه سمه لاره (او له حقې لارې څخه چپ او بې لارې شو).

تفسیر: یعنې د یهودو په شان بې ضرورته او د سرکشی پوښتنې مه کوئ، ځکه داسې پوښتنې د کفر او ګمراهی لار ده.

وَدَّ كَثِيۡرٌ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ لَوۡ يَرُدُّوۡنَكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ اِيۡمَانِكُمۡ كُفَّارًا ۖۚ حَسَدًا مِّنۡ عِنۡدِ اَنۡفُسِهِمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الۡحَـقُّ‌ۚ فَاعۡفُوۡا وَاصۡفَحُوۡا حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ بِاَمۡرِهٖ‌ؕ

خوښوي (او دوست ګڼي) ډېر د اهل کتابو څخه (دا) چې وګرځوي دوی تاسې پس له ایمان راوړلو ستاسې کافران؛ دحسد (له سببه)، چې (لـه خبیثو) نفسونو د دوی (پیدا شوی) دی، وروسته له هغه چې ښکاره شو دوی ته حق (چې رسول، قرآن، او داسلام دین دی)، نو عفوه و کړئ! (دوی ته) او مخ ترې وګرځوئ! (او جزا مه ورکوئ!) تر هغه پورې چې راولیږي الله امر خپل (په جهاد ددوی یا په جزیه اخیستلو له دوی نه).

تفسیر: یعنې تر هغه پورې تاسو دهغوی په خبرو صبر او تحمل وکړئ! چې څمونږ له لوري تاسو ته کوم حکم راشي؛ لکه چې په پای (آخر) کې محمد صلی الله علیه وسلم ته داسې حکم راغی چې ټول یهودان دمدینې منورې له چار چاپېره څنې وشړئ!.

اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿١٠٩﴾

بېشکه چې الله په هر شي ښه قادر دی (نو هرومرو له دوی نه انتقام اخلي).

تفسیر: یعنې له خپل ضعف له امله اندېښنه او تردد مه کوئ!، ځکه چې پاک الله په خپل قدرت سره تاسې غالب او عزیز، او یهودان مغلوب او ذلیل کوي، یا دا چې ډیل او تعطیل د عجز له امله نه دی.

وَاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ‌ؕ وَمَا تُقَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِكُمۡ مِّنۡ خَيۡرٍ تَجِدُوۡهُ عِنۡدَ اللّٰهِ‌ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِيۡرٌ ﴿١١٠﴾

او سم دروئ (ادا کوئ له ټولو حقوقو سره) لمونځ، او ورکوئ زکات، او هغه شی چې مخکې لېږئ لپاره د ځانو خپلو له نیکی (لکه صله رحمي، او صدقه) وبه مومئ (ثواب د) هغه په نزد د الله، بېشکه الله په هغه شي چې کوئ یې تاسې ښه لیدونکی دی (نو نه ضایع کیږي اعمال ستاسې، او جزا یې درکوي).

تفسير: يعنې د هغوی په ضرر او ايذاء باندې صبر وکړئ، او په عباداتو کې بوخت (مشغول) او لګيا اوسئ !، ځکه چې الله تعالى ستاسې له کارونو څخه هيڅکله غافل او بېخبر نه دی، ستاسې هيڅ يو ښه کار نشي ضايع کيدی.

وَقَالُوا لَن يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ

او وايي: (اهل کتاب) له سره به نه ننوځي جنت ته مګر هغه څوک (به ننوځي) چې وي يهودي يا نصراني؛

تفسير: يعنې يهودان خو وايي چې: «پرته له مونږ بل هيڅوک جنت ته نشي ننوتلی»، او نصرانيان وايي چې: «پرته له مونږ بل هيڅوک جنت ته نشي ننوتلی».

تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١١١﴾ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِندَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١١٢﴾

دا نفساني غوښتنې د دوی دي، ووايه (ای محمده ! دوی ته) راوړئ دليل خپل (پر دې خبره) که چېرې يئ صادقان (په دې وينا کې، نه ده داسې) بلکه هر څوک چې وسپاري ځان خپل الله ته حال دا چې دی نيکوکار وي، نو دی ده لره اجر دده په نزد د رب دده، او نه به وي هيڅ (قسم) وېره په دوی باندې، او نه به دوی (هيڅېرې) خپه کيږي (دجزا په وخت کې).

تفسير: يعنې چا چې د الله تعالى احکام ومنل، او د هغو متابعت يې وکړ، که څه هم دا احکام د هر نبي له لوري ورته رسيدلي وي، او په خپل قوميت او اصولو باندې يې د يهودانو په شان تعصب ئي ونکړ، نو هغوی لره ښه اجر دی، او نه په هغوی کې داسې کومه خبره شته چې د هغې له امله به دوی په وېره کې وي، او نه به دوی غمجن وي.

وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ وَقَالَتِ النَّصَارَىٰ لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَهُمْ يَتْلُونَ الْكِتَابَ

او وايي يهودان چې: نه دي نصرانيان په هيڅ شي (له حق دين څخه) او وايي نصرانيان چې: نه دي يهودان په هيڅ شي (له حق دين څخه) حال دا چې دغه (يهودان او نصرانيان) لولي دوی کتاب (دالله).

تفسير: يعنې کله چې يهودانو (تورات) لوستلو؛ نو پوهه شول چې نصرانيان عيسى عليه السلام د الله جل جلاله ځوی بولي، او په دې مسئله ښه پوه شول چې دوی بېشکه کافران دي، او نصرانيان د (انجيل) له لوستلو څني په دې ښه وپوهېدل، چې يهودان د عيسى عليه السلام د نبوت د نه منلو له امله کافران شول.

كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١١٣﴾

همدارنګه ويل هغو کسانو چې نه پوهېدل (لکه مجوسيان او مشرکان) په شان د ويلو ددغو (کتابيانو) نو الله به حکم وکړي په منځ ددوی کې په ورځ د قيامت په هغه شي کې چې وو دوی چې په هغه کې به يې اختلاف (او جګړې) کولې.

تفسير: له دې جاهلانو څخه د عربو مشرکين او بت پرستان مراد دي، يعنې همغسې چې يهود او نصارى يو بل کافر او

ګمراه ګڼي؛ همداسې بت پرستان هم پرته له خپلو ځانو نور ټول ګمراهان او بې دينان بولي، نو دوی دې په دنيا کې هسې خبرې کوي، په قيامت کې به د هغو په نسبت فيصله وشي.

**فايده:** دلته داسې يوه شبهه پيدا کيږي، کله چې يې ﴿كَذٰلِكَ﴾ وفرمايل، نو بيا د ﴿مِثْلَ قَوْلِهِمْ﴾ فرمايلو ته څه حاجت وو؟ ځينې مفسران هسې ځواب وايې چې: ﴿مِثْلَ قَوْلِهِمْ﴾ د ﴿كَذٰلِكَ﴾ توضيح او تاکيد دی، او ځينې وايي چې دلته جدا جدا دوه تشبيه ګاني دي؛ نو ځکه يې دوه لفظونه وفرمايل، له يوې تشبيه څخه دا غرض دی چې د دوی او د دوی د وينا په منځ کې مشابهت سره شته، يعنې څرنګه چې دوی نورو ته ګمراه وايي، دوی پخپله هم ګمراهان دي، او له بلې تشبيه ځنې دا غرض دی: لکه چې کتابيانو دا بې دليله دعوی د خپلو نفساني اغراضو او عداوتونو له امله کوله، همداسې بت پرستان هم بې دليله يواځې د نفساني غوښتنو له امله داسې دعوی کوي.

﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللَّهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا﴾

او څوک دی لوی ظالم (بلکه نشته) له هغه چا څخه چې بندوي مسجدونه د الله له دې چې ياد کړی شي په هغو کې نوم د الله، او کوښښ کوي په ورانولو (او شاړولو) د هغو کې.

**تفسير:** که څه هم ددې آيت د نزول سبب نصاری دي؛ چې دوی له يهودانو سره مقاتله وکړه (تورات) يې وسوځاوه، او بيت المقدس يې خراب کړ، يا د مکې مشرکان دي، چې هغوی د بغض، عناد، او تعصب له کبله مسلمانان په (حديبيه) کې ستانه کړل، او د بيت الله له زيارت نه يې محروم وګرځول، مګر هغه کسان چې هر کوم مسجد ورانوي، نو هغوی هم په دې حکم کې داخل دي.

﴿أُولَٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ﴾

دغه کسان نه دي لايق دوی ته؛ دا چې ننوځي دغو مسجدونو ته مګر ويرېدونکي (له مؤمنانو څخه).

**تفسير:** يعنې له دې کفارو سره خو لايق داسې وو چې د الله تعالی مساجدو ته سره له وېرې او تواضع، ادب، او تعظيم ورننوتلی، نو دا خو ښکاره ظلم دی؛ چې کفارو هلته بې حرمتي وکړه، يا يې مطلب دا دی: چې په عزت او حکومت دوی په دې ملک کې د اوسېدلو وړ نه دي، لکه چې همداسې هم وشول؛ چې د الله تعالی له لوري مکه معظمه او (شام) مسلمانانو ته ورکړل شول.

﴿لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝١١٤﴾

دوی ته په دنيا کې ذلت دی، او (شته) دوی ته په آخرت کې عذاب ډېر لوی (په سبب د کفر او ظلم د دوی).

**تفسير:** يعنې په دنيا کې مغلوب شول، او په قيد کې و لوېدل، او مسلمانانو ته به يې جزيه ورکوله.

﴿وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ ۚ﴾

او خاص الله لره دی مشرق او مغرب، نو هر لوري ته چې مخ وګرځوئ (په لمانځه کې) نو همدغه لوري ته د الله مخ يا قبله ده.

**تفسير:** ځينې وايي چې: «په سفر کې په سورلو باندې د نوافلو د ادا کولو په نسبت، يا کله چې په سفر کې قبله مشتبه شوې وه؛ دا آيت نازل شوی وو».

إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾

بېشکه چې الله پراخ دی (رحمت د ده) ښه عالم دی.

تفسیر: یعني د هغه رحمت هر چېرې عام دی، تر یوه ځای پورې څه اختصاص نه لري، د دوی له نیتونو، مصالحو، او اعمالو څخه په ښه ډول خبر دی، او ښه پوهېږي چې د بندګانو په حق کې کوم شی مفید او کوم شی مضر دی؟ او سم له هغو سره حکم صادروي، هر څوک چې سم له هغه سره عمل کوي هغه ته ښه جزاء او هر څوک چې له هغه څخه مخالف تګ کوي هغه ته بده سزا ورکوي.

وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ بَل لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ كُلٌّ لَّهُ قَانِتُونَ ﴿١١٦﴾ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿١١٧﴾

او وایي (کفار: یهودان او نصرانیان داسې چې) نیولی دی الله ځوی، پاکي ده ده لره (له ځوی څخه)؛ بلکه دی ده لره هر هغه شیان چې پـه آسمانونو او ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې: ملكاً، خلقاً، وعبيداً)؛ ټول ده لره حکم منونکي (او مغلوب) دي.
نوی (بې له نمونې) پیدا کوونکی د آسمانونو او دځمکې دی؛ او هر کله چې اراده وکړي د یوه کار نو بېشکه همدغه خبره ده چې وایي هغه کار ته چې وشه ! نو هغه وشي.

تفسیر: یهودانو عزیر علیه السلام ته او نصرانیانو عیسی علیه السلام ته د الله تعالی ځوی و یل، الله تعالی فرمایي چې: د ده ذات له ټولو هسې خبرو څخه پاک او منزه دی، بلکه ټول موجودات بېخي د ده مملوک، مخلوق، او مطیع دي.

وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللَّهُ أَوْ تَأْتِينَا آيَةٌ

او وایي هغه کسان چې دوی نه پوهیږي (یا ځان نه پوهوي) ولې خبرې نه کوي له مونږ سره الله (ېخپله) یا ولې نه راځي مونږ ته یوه نښه (دقدرت (معجزه) په صدق ستا).

تفسیر: یعني هغه جاهلان یا متجاهلان چې په کتابیانو او بت پرستانو کې دي؛ هغوی ټول سره وایي چې الله تعالی ولې بې وسیلې له مونږ سره خبرې نه کوي؟ یا کومه یوه داسې نښه نه راښیي چې مونږ د هغې له اورېدلو یا لیدلو څخه ستا د رسالت تصدیق وکړو.

كَذَٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّثْلَ قَوْلِهِمْ تَشَابَهَتْ قُلُوبُهُمْ قَدْ بَيَّنَّا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿١١٨﴾

همدارنګه به ویل هغو کسانو (چې وو) پخوا له دوی څخه په شان د خبرې د دوی؛ یو رنګ شوي دي زړونه ددوی؛ په تحقیق سره بیانې کړي دي مونږ معجزې (نښې دتوحید او نبوت) هغو خلقو ته چې دوی یقین کوي (او هیڅ شبهه او عناد په کې نشته).

تفسیر: الله تعالی فرمایي چې: «پخوانیو خلقو هم داسې د جهالت خبرې کولې» ، دا کومې نوې خبرې نه دي، او هغو کسانو ته چې یقین او باور کوونکي دي مونږ د بر حقه نبي نښې بیان فرمایلې دي، او هغه کسان چې په خپل ضد او عداوت باندې ټینګ ولاړ دي، او انکار کوي؛ نو دا یواځې حسد او عناد دی.

إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ بَشِيرًا وَنَذِيرًا ۖ وَلَا تُسْـَٔلُ عَنْ أَصْحَٰبِ ٱلْجَحِيمِ ﴿١١٩﴾

بېشکه مونږ لیږلی یې ته (ای محمده !) په حقه سره زیری ورکوونکی (په نعیم) او وېروونکی (له جحیم)، او ته به ونه پوښتل شې له صاحبانو د دوزخ څخه.

**تفسیر:** یعنې پر تاسې باندې ددې خبرې هیڅ الزام نشته؛ چې هغوی مو ولې په اسلام نه دي مشرف کړي.

وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ۗ

او هیڅ کله به راضي نه شي له تا نه (ای محمده !) یهودان او نه نصرانیان؛ تر هغې پورې چې متابعت وکړې ته د دین د دوی؛

**تفسیر:** یعنې یهودان او نصرانیان دحق له منلو سره هیڅ علاقه او کار نه لري، دوی په خپل ضد باندې کلک ولاړ دي، او له سره ستاسې دین نه مني، که بالفرض تاسې د هغوی تابع شئ نو خوښېږي، او دا ممکنه او کیدونکي خبره نه ده، نو اوس دې د هغوی د موافقت امید ونه کړی شي.

قُلْ إِنَّ هُدَى ٱللَّهِ هُوَ ٱلْهُدَىٰ ۗ

ووایه (ای محمده ! دوی ته چې) بېشکه هدایت د الله (اسلام) هم دغه هدایت دی (او بس).

**تفسیر:** یعنې په هره زمانه کې همغه دین معتبر او هدایت وو چې د هغه وخت نبي به د هغه هدایت کاوه، او اوس هغه دین؛ د اسلام پاکه طریقه ده، نه دیهودانو او نصرانیانو دود (رواج) او دستور.

وَلَئِنِ ٱتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم بَعْدَ ٱلَّذِى جَآءَكَ مِنَ ٱلْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن وَلِىٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١٢٠﴾

او قسم دی که چېرې پیروي وکړې ته دخواهشاتو د دوی وروسته له هغه چې راغلی دی تا ته له علمه نو نه به وي تا لره له (عذابه د) الله هیڅ دوست (ساتونکی له بلیاتو) او مددګار (خلاصوونکی له نازله وو عذابونو).

**تفسیر:** دا یوه فرضي خبره ده، یعنې که بالفرض تاسې داسې وکړئ؛ نو له الهي قهره هیڅوک خپل ځان نه شي ژغورلی (بچ کولی) یا یې منظور د امت تنبیه ده؛ چې که کوم سړی مسلمان شي، او په قرآني احکامو پوهېږي، او بیا له اسلامه مخ واړوي، نو هیڅوک دې له عذابه نشي ژغورلی (ساتلی).

ٱلَّذِينَ ءَاتَيْنَٰهُمُ ٱلْكِتَٰبَ يَتْلُونَهُۥ حَقَّ تِلَاوَتِهِۦٓ أُو۟لَٰٓئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِۦ ۗ وَمَن يَكْفُرْ بِهِۦ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ﴿١٢١﴾

هغه کسان چې ورکړی دی مونږ دوی ته کتاب لولي (دغه د اهل کتاب مؤمنان) دا کتاب په حق لوستلو د هغه سره؛ هم دغه کسان ایمان راوړي په دغه (کتاب پرته له محرفینو)؛ او هغه څوک چې کافر شي په ده نو دغه کسان هم دوی دي زیانکاران (چې ایمان په کفر بدلوي).

**تفسیر:** په یهودانو کې لږ کسان منصفان هم وو چې خپل کتابونه یې داسې لوستلي او پرې پوهیدلي وو؛ چې په الفاظو کې یې تحریف نه کاوه، په معنی د هغه کې یې فکر چلاوه، او په مقتضی یې عمل کاوه، او په پاک قرآن یې ایمان راوړی وو، لکه (عبد الله بن سلام رضي الله عنه)، او د هغه ملګری، یعنې دوی (تورات) په غور سره لوست، او هم دوی ته ایمان په برخه شو، او هغه کسان چې له خپل کتاب څخه یې انکار وکړ، او په هغو کې ئې ګوتې ووهلې، او سره واپې ړاوه، او تحریف یې وکړ، نو دوی زیانکاران، خائنان، او خاسران شول.

يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ١٢٢ وَٱتَّقُواْ يَوۡمٗا لَّا
تَجۡزِي نَفۡسٌ عَن نَّفۡسٖ شَيۡـٔٗا وَلَا يُقۡبَلُ مِنۡهَا عَدۡلٞ وَلَا تَنفَعُهَا شَفَٰعَةٞ وَلَا هُمۡ يُنصَرُونَ ١٢٣

ای بني اسرائیلو (اولاده د یعقوبه !) یاد کړئ نعمت زما هغه چې انعام کړی دی ما پر تاسې، (او بل دا یاد کړئ چې) بېشکه ما غوره کړي یئ تاسې (یعني نیکونه ستاسې) پر خلقو (د زماني ستاسې). او ووېرېږئ له (عذابه د) هغې ورځې چې لرې کولی به نشي هیڅ نفس له هیڅ (کافر) نفس څخه هیڅ شی (له عذابه)، او نه به شي قبلولی له دغه نفس څخه بدل (فدیه) او نه به نفع رسوي ده ته شفاعت (سپارښت د هیچا)، او نه به له دوی سره مدد وکړی شي (په دفع د عذاب کې).

تفسیر: د هغو خبرو یادونه چې په شروع کې بني اسرائیلو ته شوې وه، اوس بیا د هغو ټولو حالاتو د یادولو څنې وروسته بیا هم د همغو یادونه د تاکید او تنبیه او وېښولو له امله کړی شوې ده، چې ښه یې په زړه شي او د هدایت په لوري راواوړي، او لا ښه څرګنده شي چې له دې قیصې څخه اصلي مقصد همدا دی.

وَإِذِ ٱبۡتَلَىٰٓ إِبۡرَٰهِـۧمَ رَبُّهُۥ بِكَلِمَٰتٖ فَأَتَمَّهُنَّۖ

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وازمایه ابراهیم لره پروردګار د ده په څو خبرو؛ نو ده پوره کړې هغه (خبرې).

تفسیر: لکه اوامر – نواهي – او سنن – د حج افعال- ختنه – سر بېلول (د سر لار ایستل) مسواک او نور چې ابراهیم علیه السلام د الله تعالی د احکامو سره سم هغه ټول په ډېر اخلاص سره په ځای راوړي دي، او ټول یې په ډېر ښه ډول سره ادا او انتها ته رسولي دي، او له همدې امله د خلقو امام او پیشوا ګرځول شوی دی.

قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامٗاۖ

وویل (الله) چې بېشکه زه ګرځوونکی یم تا لره لپاره د خلقو مقتدا (په دین کې).

تفسیر: یعنې ټول (راتلونکي) انبیاء به ستاسې په متابعت باندې ټګ وکړي.

قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِيۖ قَالَ لَا يَنَالُ عَهۡدِي ٱلظَّٰلِمِينَ ١٢٤

وویل (ابراهیم) او له اولادې مې هم (مقتدیان وګرځوه)، نو وفرمایل (الله) نه رسیږي عهد زما کافرانو ته.

تفسیر: (بني اسرائیل) په دې ډېر مغرور وو؛ چې مونږ د ابراهیم علیه السلام اولاد یو، او الله تعالی له (ابراهیم علیه السلام) سره وعده فرمایلې ده؛ چې نبوت او مشري به ستا په اولاده او نسل کې پاتې وي، او مونږ د (ابراهیم علیه السلام) په دین باندې یو، او ګرد دهغه دین منو، اوس پاک الله دوی پوهوي، چې د الله تعالی هغه وعده له هغو کسانو سره وه، چې د نیکۍ پر لار یې ټګ کاوه.

(ابراهیم علیه السلام) دوه ځامن درلودل (لرلو)، تر یوې مودې پورې د (اسحاق علیه السلام) په اولاده کې مشري او نبوت وو، اوس د (اسماعیل علیه السلام) خیلخانې او اولادې ته رسېدلي دي، ځکه چې ده د خپلو دواړو ځامنو په نسبت دعا کړېده، او فرمایلي یې دي چې: داسلام دین تل یو دی، ښایي چې ټول رسولان او امتیان په همغې یوې لارې لاړ شي، او هغه دا ده: کوم حکم چې پاک الله د رسولانو په وسیله رالیږلی؛ ومنل شي، چې اوس په دغه دین

باندې يواځې مسلمانان تګ کوي، او تاسې له دې طريقې څخه مخ اوړولی دی، په لومړنيو آياتو کې يې خپلې ښيګڼې (فائدو) او انعامات را وښوول، او س د هغوی هغه شبهه ردوي او دفعه کوي، چې بني اسرائيل خپل ځانونه د ټول عالم امام او متبوع او له ټولو څخه ښه او افضل ګڼل، نو ځکه يې د بل هيچا متابعت نه کاوه.

وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا

او (ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وګرځوله مونږ کعبه ځای د ثواب (او اجتماع) خلقو ته او ځای د امن.

تفسير: يعني هر کال د حج لپاره خلق هلته سره راټوليږي، او هلته د حج ارکان ادا کوي، نو دا خلک له دوزخ له عذابه ساتلي او مأمون کيږي، يا هلته په بل هيچا څه تجاوز او تيری نه کيږي.

وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى

او ونيسئ (ای مؤمنانو !) له ځای د (درېدلو د) ابراهيم څخه ځای دلمانځه (أو طواف او دعا).

تفسير: «مقام ابراهيم عليه السلام» هغه تيږه ده، چې ابراهيم عليه السلام د کعبې شريفې د ودانولو په وخت کې پرې درېده، په دې تيږې باندې د ابراهيم عليه السلام د پښو نښې دي، او دی په همدې تيږې باندې د حج د دعوت لپاره درېدلی وو، اوس حکم دی، چې له دې تيږې (ګټې) نږدې لمونځ وکړل شي، او دا حکم استحبابي دی.

وَعَهِدْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿١٢٥﴾

او حکم کړی وو مونږ ابراهيم ته او اسماعيل ته؛ چې پاک کړئ !(او پاک وساتئ ! تاسې دواړه پلار او ځوی) کور (د عبادت) ځما لپاره د طواف کوونکو او معتکفينو (يا دمسافرانو او مقيمانو) او (لپاره د) رکوع کوونکو، سجده کوونکو، (لمونځ کوونکو).

تفسير:يعني دلته دې خلق خراب کارونه ونه کړي !، او د هغه په چپ چاپېر (چار چاپېره) کې دې ناولي ونه ګرځي، او طواف دې په طهارت سره وکړي !، او له ټولو چټليو (ګندګيو) څخه دې بيت الله شريف پاک، صفا وساتل شي !.

وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هَٰذَا بَلَدًا آمِنًا

او (ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وويل ابراهيم: ای ربه ځما ! وګرځوه دا ښار (چې کعبه مې په کې ودانه کړېده) ځای دامن.

تفسير: د کعبې شريفې د ودانولو په وخت کې ابراهيم عليه السلام داسې دعا کړې وه، چې دا ميدان دې ودان او مأمون ښار وي !، لکه چې همداسې هم وشول.

وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرَاتِ مَنْ آمَنَ مِنْهُم بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

او روزي ورکړه اوسېدونکو ته يې له هر راز ميوو نه، هر هغه چا لره چې ايمان يې راوړی دی له دوی څخه په الله او په ورځ آخره باندې (چې د قيامت ورځ ده).

تفسير: يعني ددې ځای هغو اوسېدونکو ته چې مسلمانان وي، رزق او روزي وررسوه !، او مېوې ور ډېرې کړه !، او کافرانو ته يې دعا ونه فرمايله، چې هغه پاک ځای د کفارو له پليتی او ګندګی څخه پاک او صاف پاتې وي.

قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلَىٰ عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿۱۲۶﴾

وفرمايل (الله): او هر څوک چې کافر شو، نو فايده به ورکړم هغه ته لږه بيا به په زور (او خوارۍ) بوځم دى عذاب د اور (د دوزخ) ته، او بد ځاى د ورتلو دى (هغه اور).

تفسير: حق تعالى فرمايي چې په دنيا کې کفارو ته رزق ورکاوه شي، او د رزق حال لکه (امامت) داسې نه دى؛ چې هغه ما سوا له ايمان لرونکي بل چا ته نه وررسيږي.

وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرَاهِيمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَإِسْمَاعِيلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۲۷﴾

او (ياد کړه اى محمده !) هغه وخت چې پورته کړل ابراهيم تاداوونه (بنيادونه) د کعبې او اسماعيل (هم ، او دواړو به ويل) اى ربه څمونږ ! ته قبول کړه (دا کار) له مونږ څخه، بېشکه ته چې يې همدا ته ښه اورېدونکى، ښه پوهېدونکى يې.

تفسير: يعنى دا کار مونږ ته په خپل دربار کې قبول کړه !(چې د کعبې ودانول دي)، ته د ټولو دعاوې اورې، او د دوى په نيتونو باندې پوهېږې.

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُسْلِمَةً لَكَ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۱۲۸﴾ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿۱۲۹﴾

اى ربه څمونږه ! او وګرځوه مونږه حکم منونکي ستا، او (وګرځوه) له اولادې څمونږ يوه ډله حکم منونکي ستا، او وښيه مونږ ته احکام د حج زمونږ، او قبوله کړه توبه څمونږ، بېشکه ته همدا ته چې يې ښه توبه قبلوونکى، ښه مهربان يې.

اى ربه څمونږ ! پيدا کړه (وليږه) په دوى کې يو رسول له دوى څنې؛ چې دى لولي پر دوى باندې آيتونه ستا (چې دتوحيد او نبوت دلايل دي)، وښيي دوى ته کتاب (قرآن) او حکمت (شرعي احکام) او پاک کړې دوى (له ګناهونو )، بېشکه ته همدا ته يې ښه غالب دحکمت خاوند (په خپل کار کې).

تفسير: دا دعا ابراهيم او دده ځوي اسماعيل (عليهما السلام) دواړو کړېده، چې څمونږ په نسل کې يوه حکم منونکې ډله پيدا کړه !، او يو داسې رسول په دوى کې وليږه ! چې هغو ته کتاب او حکمت وښيي !، نو داسې يو نبي چې د دوى دواړو له اولادڅخه دى پرته له خاتم المرسلين محمد صلى الله عليه وسلم څخه بل څوک نه دى، نو ددې له امله د يهودانو د پخوانيو خيالاتو پوره ترديد وشو.

له (علم الکتاب) څنې قرآن او دهغه ضروري مطالب او معاني مراد دي، چې له عبارت څخه واضح او ښکاره کيږي، او له (حکمت) څخه سنت او د دين فهم مراد دى.

وَمَنْ يَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ إِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهُ وَلَقَدِ اصْطَفَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿۱۳۰﴾ إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّهُ أَسْلِمْ قَالَ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿۱۳۱﴾ وَوَصَّىٰ بِهَا إِبْرَاهِيمُ بَنِيهِ وَيَعْقُوبُ يَا بَنِيَّ إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ لَكُمُ الدِّينَ فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿۱۳۲﴾

او څوک دی چې مخ ګرځوي له دين دابراهيم څخه (هيڅوک يې نه ګرځوي) مګر هغه څوک چې احمق ګرځولی وي ده ځان خپل، او البته په تحقيق غوره کړی وو مونږ ابراهيم په دنيا کې (په نبوت، خلت، او دبيت الله په تعمير سره)؛ او بېشکه دې په آخرت کې له (خاصو) نېکانو څخه دی.

او (ياد کړه) کله چې وويل ابراهيم ته رب د ده، چې غاړه کيږده (ځما احکامو ته) نو وويل (ابراهيم): غاړه مې اېښې ده رب د عالميانو ته.

او وصيت کړی وو په دېن خپل سره ابراهيم ځامنو خپلو ته، او يعقوب (هم)، چې ای ځامنو ځما ! بېشکه چې الله غوره کړی دی تاسې دين (د اسلام) نو له سره مه مرئ تاسې مګر په هغه حال کې چې تاسې مسلمانان يئ، چې (پر اسلام تر ځنکدن او مرګ ثابت اوسئ !).

تفسير: د هغه ملت او مذهب چې شرف يې ذکر شو، د همدې ملت وصيت ابراهيم او يعقوب (عليهما السلام) خپلو اولادو ته فرمايلی وو، نو هر هغه څوک چې دا وصيت ونه مني، نو دی د هغو له وېناوو ځنې هم سر غړوي.

يهودان وايي چې: «يعقوب عليه السلام خپلو اولادو ته د (يهوديت) وصيت فرمايلی دی»، دا وينا بالکل دروغ ده، لکه چې په وروستني آيت کې راځي.

له دې آيت څخه مقصد نهي ده له ترکه د اسلامه، نه له مرګه. لکه چې ويلی شي: «**لا تصل إلا وأنت خاشع !**» يعنې لمونځ مه کوه ! ای لمونځ کوونکيه ! مګر په هغه حال کې چې يې ته ويرېدونکی د الله څخه.

أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ ٱلْمَوْتُ إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنۢ بَعْدِى قَالُوا۟ نَعْبُدُ إِلَٰهَكَ وَإِلَٰهَ ءَابَآئِكَ إِبْرَٰهِـۧمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ إِلَٰهًا وَٰحِدًا وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿١٣٣﴾

آيا وئ تاسې حاضران په هغه وخت کې، چې راغي يعقوب ته (اسباب د) مرګ، کله چې وويل (يعقوب) ځامنو خپلو ته چې: د څه شي عبادت به کوئ پس له (مرګه) ځما؟ نو وويل دوی چې: عبادت به کوو د معبود ستا، او د معبود د پلرونو ستا چې ابراهيم او اسماعيل او اسحاق دي، هغه الله ته چې يو دی (شريک نه لري) او مونږ ټول هغه ته غاړه اېښودونکي يو.

تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٣٤﴾

دغه يو ټولی وه چې په تحقيق تېر شوی دی، هغوی ته ده (جزا د) هغه څه چې کړي يې وي، او تاسې ته ده (جزا د) هغه څه چې کړي دي تاسې، او نه به تاسې پوښتل کيږئ له هغه څه چې وو دوی چې کاوه به يې (هغه).

تفسير: يعنې يهودانو او نصرانيانو يقين درلود (لرلو) چې «د مور او پلار په ګناهونو به ځامن نيول کيږي، او د هغوی په ثوابو کې به هم برخه آخلي»، دا وينا بيخي غلطه او چټې (بېکاره) ده، بلکه د هر چا عمل د ده د لارې مل، او چاره يې تر غاړه ده، څه يې چې کړلي وي، هغه به ريبي، او هر څه يې چې کړي وي؛ هغه به يې په مخ کې راځي، ښه وي که بد.

وَقَالُوا۟ كُونُوا۟ هُودًا أَوْ نَصَٰرَىٰ تَهْتَدُوا۟ۗ

او وايي دوی (کتابيان مسلمانانو ته): چې شئ ! يهودان يا (شئ) نصرانيان چې سمه لاره ومومئ.

تفسير: مطلب دا دی چې يهودان مسلمانانو ته وايي چې يهودان شئ !او نصرانيان دوی ته وايي چې: نصرانيان شئ چې هدايت مو په برخه شي.

قُلْ بَلْ مِلَّةَ إِبْرٰهٖمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿۱۳۵﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته چې مونږ داسې نه کوو) بلکه (متابعت کوو) ددين د ابراهيم چې په يوه لوري وو (يعني ټينګ ولاړ وو پر حق او بيزار وو له باطل څخه)، او نه وو دی له مشرکانو څخه.

تفسير: يعني ای محمده ! (صلی الله عليه وسلم) دوی ته ووايه چې ستاسې دا وينا هيڅ د منلو وړ نه ده، بلکه مونږ د ابراهيم عليه السلام له هغه ملت سره بالکل سم او موافق يو؛ چې له ګردو خرابو مذاهبو څنې بېل دی. په دې خبره کې چې نه وو دی له شرک کوونکو څنې؛ دې خبرې ته اشاره ده چې تاسې دواړه فرقې په شرک کې اخته يئ، بلکه د عربو نور مشرکان هم چې د ابراهيمي مذهب مدعيان وو، د شرک او کفر په سيند کې لاهو وو. له دې آيته په هغو هم رد وشو. له انصاف له مخې اوس له دې دوه وو فرقو څخه هيڅ يوه هم په ابراهيمي مذهب باندې نه ده، او يوازې مونږ مسلمانان په ابراهيمي مذهب پاتې يو.

**فائده:** په هر شريعت کې درې خبرې وي:

(۱) عقايد، لکه توحيد، نبوت، او نور مؤمن به شيان، نو په دې کې ټول آسماني دين لرونکي شامل، شريک، او موافق دي، او اختلاف له سره په کې ممکن نه دی.

(۲) د شريعت کليه قواعد، چې له هغو څنې جزئيات او فرعي مسائل حاصليږي، او په ټولو جزئياتو کې تل هماغه کليات ملحوظ او تر کتنې لاندې وي، او في الحقيقه ملت دهمدې اصولو او کلياتو نوم دی، او د محمد صلی الله عليه وسلم د ملت (دين) او د ابراهيمي ملت توافق او اتحاد هم په همدغو کلياتو کې دی.

(۳) د ګردو کلياتو او ټولو اصولو او فروعو مجموعه چې هغه ته شريعت وايي، چې ددې خلاصه داسې شوه چې د محمد رسول الله او ابراهيم خليل الله (عليهما الصلاة والسلام) ملت سره يو دی، او د دوی شريعتونه سره بېل دي.

قُولُوٓا ءَامَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ إِلٰىٓ إِبْرٰهٖمَ وَإِسْمٰعِيلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَمَآ أُوتِيَ مُوسٰى وَعِيسٰى وَمَآ أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿۱۳۶﴾

ووايئ (ای مؤمنانو !) چې ايمان راوړی دی مونږ په الله او په هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی په مونږ او په هغو (صحيفو) چې نازل کړی شوي دي، ابراهيم ته، او اسماعيل، او اسحاق، او يعقوب، او اولادې (ددوی) ته، او په هغو (کتابونو او معجزاتو) چې ورکړی شوي موسی ته، او (ورکړي شوي دي) عيسی ته، او (پر) هغو (کتابونو) چې ورکړی شوي دي (نورو) انبياوو ته له ربه د ددوی نه، حال دا چې نه کوو فرق په منځ د يوه تن له دوی څنې (په نبوت او نه نبوت سره) او مونږ الله ته غاړه ايښودونکي يو.

تفسير: يعني مونږ په ټولو انبياوو او کتابونو ايمان لرو، او ټول حق ګڼو، او هر يو له دوی څنې په خپله زمانه کې واجب الاتباع بولو. مونږ د الله تعالی حکم منونکي يو، او وايو چې په هره زمانه کې هر نبی عليه السلام چې هر الهي حکم له ځانه سره راوړی دی؛ د هغو منل او اتباع ضروري دي، پرته له کتابيانو څنې چې له خپل دين څخه په غير د نورو

ټولو اديانو تکذيب کوي، اګر که د دوی دين منسوخ شوی هم و ي، او د انبياوو هغه احکام دروغ ګڼي، چې د الله تعالی احکام دي.

فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا ۖ وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ ۖ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۳۷﴾

نو که ايمان راوړي (دا يهود او نصاری) لکه چې تاسې ايمان راوړی دی په هغه (مؤمن به شيانو بې له فرقه) نو په تحقيق يې وموندله سمه لاره، او که يې مخ وګرځاوه (له ايمانه) نو بېشکه خبره همدا ده چې دوی (له تاسې سره) په مخالفت کې دي، نو ژر ده چې کافي به شي په (دفع د شر) د دوی کې تا لره الله، او هم دې دی ښه اورېدونکی (داقوالو) ښه عالم (په احوالو).

**تفسير:** يعنې ددوی له دښمنۍ او ضد څخه مه وېرېږه!، پاک الله د هغوی له شر او ضرر څخه ستاسې ساتونکی دی، هغوی تاسې ته هيڅ ورانی نه شي رسولی، الله تعالی د ټولو خبرې اوري، او په ټولو احوالو او نيتونو خبر او پوه دی.

صِبْغَةَ اللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً ۖ وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ ﴿۱۳۸﴾

(او وايئ: ای مؤمنانو! چې مونږ الله رنګ کړي يو) په رنګ د الله، او څوک ښه دی له الله څخه له جهته د رنګه (ددين)، او مونږ خاص ده لره عبادت کوونکي يو.

**تفسير:** يهودان له دې آيتونو څخه واوښتل او اسلام يې ونه مانه، او نصرانيانو هم انکار وکړ، او د لافو او باټو په ضمن کې به يې ويل چې: «له مونږ سره داسې يو رنګ شته چې له مسلمانانو سره نشته».

دنصرانيانو دا دود (رواج) وو چې يو ډول زېړ رنګ يې جوړ کړی وو، او کله به چې په دوی کې کوم وړوکی پيدا کېده، او يا به کوم سړی د دوی په دين کې داخلېده، نو دوی به په هغه رنګ رنګاوه، او په هغه کې به يې غوټه کاوه، چې سوچه او ستره نصراني شي، نو پاک الله فرمايي چې: «ای مسلمانانو! ووايئ چې مونږ د الله تعالی په رنګ سره رنګ شوي يو؛ چې ايمان دی، حق دين مو منلی دی چې ددې حق دين له منلو او ننوتلو څخه وروسته ټولې ناپاکۍ او ناولتياوې او نور کثافات (خيري) بېخي لرې کېږي، او هر مسلمان په کې پاک، صاف کېږي».

قُلْ أَتُحَاجُّونَنَا فِي اللَّهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ وَلَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ ﴿۱۳۹﴾

ووايه (ای محمده! دوی ته) آيا جګړه کوئ تاسې له مونږه سره په (دين) د الله کې؛ حال دا چې هغه دی رب زمونږ او رب ستاسې، او مونږ لره دي عملونه زمونږ، او تاسې لره دي عملونه ستاسې، او مونږ خاص الله لره په اخلاص (عبادت کوونکي) يو.

**تفسير:** يعنې د الله تعالی په نسبت ستاسې داسې نزاع او جګړې کول او داسې ګڼل چې د الله تعالی د رحمت او عنايت لايق او مستحق پرته له مونږ څخه بل هيڅوک نشته؛خوشې بېکاره خبره ده، او هغه پاک ذات همغسې چې ستاسې رب دی، زمونږ رب هم دی، او مونږ څه عملونه چې کوو، خالص الله تعالی لره يې کوو، مونږ تاسې غوندې يواځې په خپلو پلرونو او نيکونو افتخار نه کوو، او په تعصب، نفسانيت، او حسد کې اخته نه يو، نو بيا به ولې زمونږ عملونه د پاک رب په دربار کې نه منل کېږي؟!

أَمْ تَقُولُونَ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطَ كَانُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ ۗ قُلْ أَأَنتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللَّهُ ۗ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَتَمَ شَهَادَةً عِندَهُ مِنَ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٠﴾

آيا وايئ تاسي (اى كتابيانو !) چې بېشکه ابراهيم او (دده ځامن او لمسي) اسماعيل او اسحاق او يعقوب او اولاد (د دوى) وو دوى (ټول) يهوديان يا نصرانيان؛ ووايه (اى محمده ! دوى ته) آيا تاسې ښه پوهيږئ که الله؛ او څوک دى زيات ظالم له هغه چا نه چې پټوي له خلقو (ثابته) شاهدي په نزد د ده له طرفه د الله؛ او نه دى الله بې خبره له هغه څه چې تاسې يې کوئ.

تفسير: د ابراهيم او اسماعيل او نورو انبياوو (عليهم السلام) په نسبت چې کتابيانو داسې دعوى کوله چې: دوى يهوديان يا نصرانيان وو؛ ښکاره او صريحه دروغ ده، برسېره پر دې حق تعالى فرمايي: ﴿مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا﴾ (د آل عمران سورت ۶۷ آيت) نو اوس راوښيئ ! چې ستاسې پوهه او علم زيات دى، که د هغه (علام الغيوب الله تعالى)؟ .

تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۖ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُم مَّا كَسَبْتُمْ ۖ وَلَا تُسْأَلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٤١﴾

دغه يوه ډله وه چې په تحقيق تېره شوې وه، هغوى لره ده (جزا) د هغه څه چې کړي يې وي، او تاسې لره ده (جزا) د هغه څه چې کړي دي تاسې، او نه به تاسى پوښتل کيږئ له هغه څه چې وو دوى چې کول به يې.

تفسير: همدا آيت وړاندې تېر شوى دى، هر کله چې ددې کتابيانو په زړونو کې تکبر او غرور ځاى نيولى وو، او داسې يې ګڼل چې ځمونږ أعمال هر څومره چې خراب وي، بيا به هم ځمونږ پلرونه شفاعت کوي، او بخښنه به راته غواړي، نو ځکه دداسې چټي خيالاتو د لا ښه ترديد کيدلو لپاره يې هغه آيت بيا مکرر بيان وفرمايه، داسې وپوهيږئ چې په پخواني آيت کې کتابيانو ته خطاب وو، او په دې آيت کې (محمدي) امت سره مخاطبه ده، چې په دې چټي خيال کې د هغوى متابعت او پيروي مه کوئ !، ځکه چې دا راز هيلې او توقعات هر سړى د خپلو مشرانو او مړو ځنې په خپل زړه کې کولى شي، چې داسې تخيلات او توقعات بيخي غلط او چټي دي، اوس وروسته له دښه د يهودانو او نورو مشرکانو ديوې بلې ناپوهى او حماقت څخه اطلاع ورکول کيږي، چې د قبلې د تحويل په نسبت عنقريب راتلونکې ده.

سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلَّاهُمْ عَن قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا ۚ

ژر ده چې وبه وايي ناپوهان له خلقو چې څه شي وګرځول دوى (يعنې رسول صلى الله عليه وسلم او مؤمنان) له قبلې د دوى څخه، هغې نه چې وو دوى په هغې باندې؟

تفسير: کله چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم مکې شريفې څخه مدينې منورې ته تشريف راوړ، تر ۱۶ — ۱۷ مياشتو پورې يې د بيت المقدس په لوري لمونځ کاوه، وروسته مامور شول، چې د کعبې شريفې په لوري خپل مخ وګرځوي، دلته يهودان اومشرکان، منافقان او ځينې ضعيف الاعتقاد مسلمانان په اندېښنو او شبهو کې ولوېدل، او مخالفانو په ټوقو او مسخرو لاسونه پورې کړل، او داسې به يې ويل: «دوى خو تر اوسه پورې د بيت المقدس په لورې چې د ټولو انبياوو قبله وه، لمونځ کاوه، نو اوس په دوى څه وشول، چې هغه د پخوانيو انبياوو قبله يې پرېښوده؟ او د کعبې په لوري يې مخ وګرځاوه؟»، چا به ويل چې: «ديهودانو د عداوت له امله يې داسې وکړل»، ځينو به ويل چې: «دې په خپل دين کې متردد او متحير دى، چې له دې چارو ځنې د ده تذبذب او عدم نبوت راښکاره کيږي»، نو الله تعالى ځواب ورکړ چه:

قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۭ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَاۗءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٤٢﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې الله لره دى مشرق او مغرب (بلکه ټول جهات) هدايت کوي
هغه چا ته چې اراده (دهدايت يې) وکړي (طرف) د لارې سمې ته (چې اسلام دى).

تفسير: يعنې اى محمده ! دغو ناپوهانو ته ووايه چې: نه مونږ ديهودانو له عداوته، او نه د بل کوم نفساني تعصب له امله، او نه له خپلې شخصي رايې له متابعته، خپله قبله بدله کړېده، بلکه مونږ يوائې د الله تعالى د فرمان په اثر، چې ځمونږ د حق دين اساس دى، دا قبله بدله کړه، تر هغه وخته پورې چې مونږ مامور وو چې دبيت المقدس په لورې لمونځ وکړو، نو مونږ هغه حکم ومانه، اوس چې مونږ مامور شوي يو، چې د کعبې شرېفې په لورې مخ وګرځوئ ! نو مونږ دزړه له کومې دا حکم هم ومانه، نو ددې په نسبت له مونږ ځنې داسې پوښتنې، او پر مونږ دا راز اعتراضونه کول سخت حماقت دى.

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَاۗءَ عَلَي النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ۭ

او همداسې (لکه چې هدايت مو درته کړى دى) ګرځولې يئ مونږ تاسې يوه ډله غوره لپاره
ددې چې شئ شاهدان په نورو خلکو (دجزا په ورځ د انبياوو له خوا) او چې شي (محمد) رسول
(د الله) پر تاسې (اى محمدي امته !) شاهد.

تفسير: يعنې هماغسې چې کعبه ستاسو قبله ده، او د ابراهيم عليه السلام قبله ده، او له ټولو قبلو ځنې افضله ده، همدا راز مې تاسې هم له ټولو امتونو ځنې افضل، او ستاسې رسول مې هم له ټولو نبيانو او رسولانو څخه اکمل منتخب او غوره کړى دى، چې ددې فضيلت او کمال له سببه تاسې د نورو ټولو امتونو په مقابل کې داسې شاهدان چې مقبول الشهادت وي منل کيږي، او محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ستاسې په عدالت او صداقت شاهدي ورکوي، لکه چې په احاديثو کې راغلي دي «کله چې د پخوانيو امتونو کافران د خپلو رسولانو د دعوى تکذيب وکړي، او ووايي چې: مونږ ته په دنيا کې د هيچا له خوا هدايت او لار ښوونه نه ده شوې، نو په دغه وخت کې محمدي امت د رسولانو د دعوى په صداقت باندې شاهدي ورکوي»، او محمد صلى الله عليه وسلم ددوى په صداقت او عدالت باندې شاهدي ورکوي، دلته به نور امتيان وايي چې: «دوى نه ځمونږ په زمانه کې وو، او نه بيخي مونږ او دوى سره ليدلي دي، نو د دوى شاهدي په مونږ څرنګه اوربدله کيږي؟؟» دلته به محمدي امت داسې ځواب ورکوي چې: «مونږ ته دا ټولې خبرې د الله تعالى له کتابه او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له ښوونې څخه را څرګندې شوې، او دغه امر مونږ ته د (علم اليقين) تر حده رسيدلى دى، نو ځکه مونږ پر تاسې شاهدي لولو.

فائده: د (وسط) معنى يعنې معتدل، مطلب دا دى چې: محمدي امت بيخي په سمه لار دى، چې په هيڅ ډول د هيڅ شانې کوږوالي شائبه په کې نشته، او له افراط او تفريط څخه بيخي پاک دى.

وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰي عَقِبَيْهِ ۭ

او نه ده ګرځولې مونږ (دا) قبله هغه چې وې ته (پخوا له هجرت نه) په هغې باندې مګر لپاره ددې
چې مونږ معلوم کړو هغه څوک چې پيروي کوي د رسول له هغه چا چې بېرته ګرځي په پندو
خپلو (کفر ته).

تفسير: يعنې اصلي قبله خو همدغه کعبه وه، چې د ابراهيم عليه السلام له زمانې را هيسې پاتې ده، د څو ورځو له مخې چې ستاسې قبله بيت المقدس ټاکلې (مقرر) شوې وه، يوائې د امتحان لپاره وه، چې څوک له تاسې امر منونکي

پاتې کيږي؟ او څوک مخ اړوي؟ نو هر څوک له دوی څخه چې پر ایمان باندې قائم پاتې دي، د هغوی درجې لوړې دي.

**فائدة:** په دې آیت کې ﴿لِنَعۡلَمَ﴾ چې د مستقبل صیغه ده، او په ﴿حَتّٰى نَعۡلَمَ﴾ ﴿فَلَيَعۡلَمَنَّ﴾ ﴿وَلَنَبۡلُوَنَّكُمۡ﴾ ﴿وَلَمَّا يَعۡلَمِ اللّٰهُ﴾ ﴿اِلَّا لِنَعۡلَمَ﴾ او نورو آیتونو کې چې د مستقبل کلمې راغلي دي، محققین هغه علم حالي بولي، چې له وجود څخه وروسته ښکاره او متحقق کیږي، او په هغه باندې جزا او سزا - مدح او ذم مترتب کیږي، او همدا یې غوره کړی دی.

﴿وَاِنۡ كَانَتۡ لَكَبِيۡرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيۡنَ هَدَى اللّٰهُ﴾

او بېشکه دی دا ګرځېدل (کعبې ته) هرو مرو (خامخا) ډېر درانه، مګر نه دي (درانه) په هغو کسانو چې سمه لاره ورته ښوولې ده الله.

**تفسیر:** لومړی څمونږ د رسول صلی الله علیه وسلم لپاره بیت الله شریف قبله مقرره شوې وه، بیا د څه وخت لپاره د امتحان په توګه بیت المقدس قبله مقرره شوه، او ټول پوهیږي چې امتحان په هغه شي کې وي؛ چې په نفس باندې درونه وي، نو پاک الله فرمایي چې: بېشکه د کعبې شریفې په ځای بیت المقدس قبله ګرځول په خلقو ښه ونه لګیدل، په عوامو مسلمانانو له دې سببه چې هغوی عموما عرب او قریش او د کعبې شریفې په افضلیت معتقد وو، کله چې په دوی د دوی له خیال، عادت، رسم، او رواج څخه مخالف کار تحمیل شو، نو متأثر شول، او د خواصو وېرېدلو سبب دا وو، چې د ابراهیمي دین څخه دا عمل مخالف وو، چې دوی د هغه په موافقت مامور وو.

﴿وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيۡعَ اِيۡمَانَكُمۡ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوۡفٌ رَّحِيۡمٌ﴾

او نه دی الله چې ضایع کړي ایمان (لمونځ) ستاسې (ای مؤمنانو !) بېشکه الله په خلقو (مؤمنانو) باندې خامخا ډېر مهربان دی (پوره رحم کوونکی دی).

**تفسیر:** یهودانو ویل: کله چې مو اصلي قبله بیت الله وه، نو ستاسې ددومره مودې هغه لمونځونه چې د بیت المقدس په طرف مو کړي دي؛ ټول ضایع شول، ځینې مسلمانانو ته داسې شبهې ورولوېدې، کله چې بیت المقدس څمونږ اصلي قبله نه وه، نو هغه مسلمانان چې په هغه حالت کې مړه شوي دي، د هغوی په ثواب کې به هم نقصان واقع شوی وي، البته ژوندي مسلمانان به په راتلونکې زمانه کې د هغه تلافي وکړي، نو دا آیت نازل شو: کله چې تاسې یوائې دخپل ایمان او د پاک الله د اطاعت له کبله دبیت المقدس په لوري لمونځ کړی دی، نو ستاسې اجر او ثواب ته څه زیان نه پېښیږي.

﴿قَدۡ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجۡهِكَ فِى السَّمَآءِ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبۡلَةً تَرۡضٰٮهَا﴾

په تحقیق سره وینو مونږ (بیا بیا) ګرځول دمخ ستا په (طرف د) اسمان، نو مونږ به وګرځوو خامخا تا هغې قبلې ته چې ته یې خوښوې.

**تفسیر:** کله چې مسلمانانو ته یهودانو طعني او پیغورونه ورکول او ویل یې: «دا نبي چې څمونږ له شریعت څخه مخالف او له ابراهیمي دین سره سم کار کوي، ولې څمونږ د قبلې په لوري لمونځ کوي؟»، نو ځکه ددغو سببو له امله په هغه زمانه کې چې دوی د بیت المقدس په لوري لمونځ کاوه، نو دهغه په زړه کې تل داسې خبرې ګرځېدلې، که د الله تعالی له لورې حکم راکړی شي، چې بیا د کعبې په لوري لمونځ وکړم، او په دې شوق کې به یې کله کله د آسمان په لوري مخ اړاوه، او هر طرف ته به یې کتل، چې ښایي په هغې پرښتې باندې یې سترګې ولګیږي، چې داسې زیری ورکړي، نو په دې مناسبت پر دوی دغه آیت نازل شو، او د کعبې شریفې د استقبال دا حکم راغی.

فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ

نو وګرځوه مخ خپل په لوري د مسجد الحرام (کعبې ته په لمانځه کې).

**تفسير:** يعنې د کعبې شريفې په لورې، مسجد الحرام يې ځکه بولي؛ چې هلته مقاتله کول، د حيواناتو ښکار کول، د ونو او وښو پرې کول او نور شيان حرام دي، کله چې د قبلې د تحويل دا حکم نازل شو، صحابه کرامو رضي الله عنهم د قباء په مسجد کې د سهار لمونځ کولو، مخونه يې شام خوا ته وو، هغوی ته يو سړی راغی، ورته ويې ويل چې: په رسول الله صلی الله عليه وسلم آيتونه نازل شول، چې په کې قبله د کعبې شريفې خوا ته وګرځول شوه، نو لمونځ کوونکو په لمانځه کې کعبې شريفې ته مخونه را وه ګرځول، (صحيح البخاري، حديث (۴۴۹۰).

وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ

او په هر ځای کې چې اوسئ نو وګرځوئ (تاسې) مخونه خپل (په لمانځه کې) په لوري دهغې (کعبې).

**تفسير:** يعنې په سفر يا په حضر کې په مدينې منورې يا په بل ښار کې، په وچه يا په درياب کې، په غره يا په ډاګ (صحرا) کې، يا پخپله بيت المقدس، يا په بل کوم ښار کې، هر چېرې چې يئ دبيت الحرام په لوري لمونځ ادا کړئ !.

وَإِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٤٤﴾

او بېشکه هغه کسان چې دوی ته ورکړل شوی دی کتاب خامخا پوهيږي دوی چې بېشکه دا (استقبال الکعبة) حق دی له لوري د رب د دوی، او نه دی الله ! غافل له هغو کارو ځنې چې کوي يې دوی.

**تفسير:** يعنې هغه اعتراضونه چې کتابيان يې د قبلې د تحويل په نسبت کوي، هغوی ته هيڅ غوږ مه ږدئ !، ځکه چې د هغوی په آسماني کتابونو کې دا خبره ښکاره ده، چې خاتم المرسلين صلی الله عليه وسلم به د څه مودې له مخې بيت المقدس په لوري لمونځ کوي، او په پای (آخر) کې به د کعبې شريفې په لوري لمونځ کوي، او دا هغو ټولو ته معلوم دی، چې د محمدي امت اصلي او دائمي قبله به د ابراهيمي دين سره سمه وي، نو ځکه هغوی دا د قبلې تحويل هم حق ګڼي، خو د حسد له مخې هر څه يې چې په خوله راځي هغه وايي، الله تعالی ددوی په ټولو خبرو ښه عالم دی، او د دوی د ويناوو نتائج به يوه ورځ هغوی ته ځرګند کړي.

وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ بِكُلِّ آيَةٍ مَا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ ۚ وَمَا أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ

او قسم دی خامخا که ته راوړې هغو کسانو ته چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب په هر قسم دليل سره؛ نه به شي تابع دوی د قبلې ستا، او نه يې ته (ای محمده !) تابع کېدونکی د قبلې د دوی، او نه دي ځينې د دوی تابع کېدونکي دقبلې دځينو (نورو).

**تفسير:** يعنې دوی داسې معتصب دي، که ته هغه ټولې ممکن الوقوع نښې دوی ته وښيې، خو بيا هم ستا قبله نه مني، دوی خو په دې غوښتنه او آرزو کې دي، چې په څه ډول تاسې د خپل ځان تابع وګرځوي، مګر د دوی دا خيال چټي او باطل دی، ته هيڅکله د هغوی د قبلې متابعت نشې کولای، ځکه چې دا د کعبې استقبال تر قيامته پورې نشي منسوخ

کیدای، أو کتابیان هم یو له بله سره د قبلې په امر کې ډېرې جګړې او خبرې لري، د یهودانو قبله د بیت المقدس صخره ده، او د نصرانیانو قبله د بیت المقدس هغه شرقي خوا ده، چې د عیسی علیه السلام د روح نفخ په کې شوی وو، کله چې دوی په خپلو مینځو کې نه جوړیږي، نو له مسلمانانو څخه ددې نقیضو متابعت غوښتل، یوائې جهل او حماقت دی.

وَلَىِٕنِ اتَّبَعۡتَ اَهۡوَآءَهُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الۡعِلۡمِ ۙ اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيۡنَ ۘ

او خامخا که بالفرض تابع شې ته دخواهشاتو د دوی وروسته له هغه چې راغی تاته له علمه (چې وحیې ده) بېشکه ته به په دغه وخت کې خامخا یې له ظالمانو څخه.

تفسیر: یعنې قطع نظر له دغو دلائلو څخه که د لرې مودې له مخې دا ومنل شي، چې (نعوذ بالله) څمونږ رسول صلی الله علیه وسلم د کتابیانو د قبلې متابعت د وحیې له نزوله او یقیني علم څخه په خلاف وکړي، نو په دې محال تقدیر دوی بېشکه د بې انصافانو له ډلې څخه شمېرل کیږي، او له یو نبي څخه دداسې شنیع امر کېدل ممکن الوقوع نه دي، نو ښکاره شوه چې د کتابیانو د قبلې متابعت له تاسې څخه له سره ممکن نه دی، ځکه چې بیخي له علمه چپ دی، یعنې جهل او ګمراهي ده.

اَلَّذِيۡنَ اٰتَيۡنٰهُمُ الۡكِتٰبَ يَعۡرِفُوۡنَهٗ كَمَا يَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَهُمۡ ؕ وَاِنَّ فَرِيۡقًا مِّنۡهُمۡ لَيَكۡتُمُوۡنَ الۡحَـقَّ وَهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ۱۴۶
اَلۡحَـقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُمۡتَرِيۡنَ ۱۴۷

هغه کسان چې ورکړی دی مونږ دوی ته کتاب؛ پېژني دوی هغه (یعنې محمد او اسلام د دوی د کتابو په تعریف) لکه چې پېژني دوی ځامن خپل، او په تحقیق چې یوه ډله له دوی څخه خامخا پټوي حق (وصف د محمد) حال داچې دوی پوهیږي (په حقانیت د اسلام او نبوت د محمد «صلی الله علیه وسلم»).
حق ثابت دی له رب ستا نو مه کیږه ته خامخا له شک کوونکو څخه !.

تفسیر: یعنی کتابیان تا ډېر په ښه شان سره پېژني، او ستا د نسب، قبیلې، مولد، مسکن، شکل، اوصاف، او له ټولو احوالو څخه په ښه شان سره پوه او خبر دي، چې ددې علامو او ښه پېژندګلوۍ له امله هغوی ستاسې په موعوده نبوت ښه علم او باور لري، او داسې مو ښه پېژني لکه چې په ډېرو هلکانو کې خپل ځامن بې له تردده او تأمله پېژني، مګر د دوی له مخالفت څخه هیڅ اندېښنه مه کوه ! او هیڅ تردد په کې مه لره !.

وَلِكُلٍّ وِّجۡهَةٌ هُوَ مُوَلِّيۡهَا فَاسۡتَبِقُوا الۡخَيۡرٰتِ ؕ اَيۡنَ مَا تَكُوۡنُوۡا يَاۡتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيۡعًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۱۴۸

او هر یوه (امت) لره یوه قبله ده، چې هغه مخ ګرځوونکي دي هغې ته (په لمانځه کې)، نو تاسې وړاندې شئ ! (یو تر بله) نیکیو ته، هر چېرته چې یئ (تاسې) رابه ولي تاسې الله ټول (په قیامت کې لپاره د جزاء د اعمالو)، بېشکه چې الله په هر شي باندې قادر دی.

تفسیر: یعنې الله تعالی هر ملت لره یوه قبله ټاکلې (مقرره کړې) ده، چې د هغې په لوري د عبادت په وخت کې مخ وګرځوي، یا هغه مسلمانان ملتونه چې د کعبې په بېلو بېلو اړخونو لکه شرق، غرب، شمال، او جنوب کې پراته دي؛ نو په دې باب بحث کول، یا پخپله قبله او سمت باندې جګړې ته ملا تړل، عبث او خوشې خبره ده، هو ! هغه نیکي چې مطلوب او مقصود ده، د هغې په لوري پېش قدمي او وړاندې تګ کول په کار دي.

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾
وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ

او هر ځاي ته چې ووځې ته (ای محمده !) نو وګرځوه ته مخ خپل په لوري د مسجد حرام (په لمانځه کې) او بېشکه دا مخ ګرځول کعبې ته خامخا حق دي له طرفه د رب ستا، او نه دی الله بې خبر له هغه شي چې تاسې یې کوئ.

او هر ځاي ته په هر وخت کې چې ووځې ته (ای محمده ! سفر ته، او قصد د لمانځه وکړې) نو وګرځوه ته مخ خپل په لوري د مسجد حرام (په لمانځه کې) او په هر ځای او هر وخت کې چې یئ (ای مؤمنانو) نو وګرځوئ (تاسې) مخونه خپل په لوري د هغې (کعبې).

**تفسیر:** د قبلې تحویل یې مکرر او بیا بیا ځکه وفرمایه چې د هغه علل او عوامل متعدد دي، نو د هر علت د څرګندولو لپاره دغه حکم تکرار شوی دی، له ﴿قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ﴾ الآیه - ځخه معلومېږي چې د خپل رسول د خوښې او رضا او دهغه د تکریم لپاره یې هم دا حکم کړی دی.

﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا﴾ څنې معلومېږي چې د الله عادت په همدې باندې جاري دی، چې هر ملت او هر پیغمبر ته چې د مستقل شریعت خاوند وي، د هغه له شان سره مناسبه مستقله قبله ټاکي (مقرروي).

او د ﴿لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ﴾ څخه معلومېږي چې ددې ذکر شوي حکم علت دا دی چې د مخالفانو الزام عائد نشي، یا به د دې تکرار سبب داسې وي؛ چې اول: د قبلې مسئله د خاص اهتمام وړ (لائق) ده، دویم: په الهي احکامو کې نسخ واقع کېدل، د ناپوهانو له پوهې څنې خورا (ډېر) لوړ کار دی، دریم: د قبلې تحویل اوله نسخه ده چې په محمدي شریعت کې ظاهره شوې ده، نو ځکه د هغې بیا بیا تکرار او تأکید عین حکمت او بلاغت دی، یا به دا وجه وي چې په اول آیت کې د احوالو تعمیم، او په دویم آیت کې د امکنه وو تعمیم، او په دریم آیت کې د ازمنه وو تعمیم مراد دی.

لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي

ددې لپاره چې نه وي خلقو (یعنې یهودانو او مشرکانو) ته په تاسې هیڅ اعتراض، مګر (اعتراض) د هغو کسانو چې ظالمان دي له دوی څنې، نو مه وېرېږئ له (اعتراضو) د دوی څخه او وو یرېږئ له ما څنې (او زما نافرماني مه کوئ !).

**تفسیر:** یعنې کعبې ته مخ ګرځول؛ ددې لپاره چې په تورات کې ذکر شوي وو، چې د ابراهیم علیه السلام قبله بیت الله دی، او دآخرې زمانې نبي صلی الله علیه وسلم ته به هم د هغه په لوري د مخ ګرځولو حکم کېږي، که په محمد صلی الله علیه وسلم باندې د قبلې د تحویل حکم نه کېدی؛ نو یهودانو به خامخا په دوی الزام اړاوه، له بل لوري به د مکې مشرکانو داسې ویل چې: د ابراهیم علیه السلام قبله خو کعبه وه، دا نبي چې د ابراهیمي دین مدعي دی، نو د هغه له قبلې څنې ولې مخالفت کوي؟ نو اوس د قبلې د تحویل د حکم له کبله دوی دواړو ته د اعتراض ځای پاتې نه شو، مګر بې انصافان اوس هم پر تاسې باندې په څه نا څه الزام اړولو کې بوخت (مشغول) دي، نو د دغسې اعتراضاتو هیڅ پروا ونکړئ ! او تل ځمونږ د حکمونو تابع اوسئ !.

وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٠﴾

او لپاره د دې چې پوره کړم زه نعمت خپل په تاسې باندې (په هدایت سره) او ښایي چې تاسې لار وموموئ (حق ته).

تفسیر: یعني دا قبله مو تاسې ته ددې له امله مقرره کړېده، چې د دښمنانو له پیغورونو څنې خلاص شئ، او د هغو په سبب زمونږ د انعامونو، اکرامونو، مستحق او د انوارو او هدایاتو پوره وړ شئ.

كَمَآ أَرْسَلْنَا فِيكُمْ رَسُولًا مِّنكُمْ يَتْلُوا عَلَيْكُمْ آيَاتِنَا وَيُزَكِّيكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴿١٥١﴾

لکه چې لېږلی دی مونږ په تاسې کې رسول له جنس د تاسې (لپاره د اتمام د نعمت خپل) چې لولي په تاسې آیتونه (قرآن) زمونږ، او پاکوي تاسې (له کفره) او ښیي تاسې ته کتاب (قرآن)، او (دهغه عمیق اسرار او) احکام، او ښیي تاسې ته هغه شیان چې نه وئ تاسې چې پرې پوهېدئ.

تفسیر: یعني د نعمت د اتمام، او د هدایت تکمیل پر تاسې داسې شوی دی، لکه چې پخوا له دې نه په تاسې کې داسې یو رسول مبعوث شوی دی، چې تاسې ته د الله تعالی احکام در ښیي.

فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوا لِي وَلَا تَكْفُرُونِ ﴿١٥٢﴾

نو یاد کړئ (تاسې) ما (په قلبي او بدني طاعت سره) نو زه به هم یاد کړم تاسې (په ثواب سره) او شکر وباسئ ! ما لره په (طاعت) او مه کافران کیږئ په ما باندې (په معصیت سره !).

تفسیر: کله چې څمونږ د لوري په تاسې مکررًا د نعمت اتمام شوی دی، نو اوس پر تاسې هم لازم دي، چې ما په ژبه، زړه، ذکر، فکر، او هر ډول سره یاد کړئ !، او حکم مې ومنئ !، چې مونږ به هم تاسې یادوو، او نوي نوي رحمتونه او عنایتونه به پر تاسې کوو، او زما د نعمتو شکریه په ښه شان سره ادا کړئ !، او زما له نا شکری او معصیت څنې ځانونه وژغورئ (محفوظ کړئ) !.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿١٥٣﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو) مدد وغواړئ (تاسې) له (الله څخه) په صبر (له معصیته او مصیبت په طاعت) او لمانځه سره، بېشکه چې الله له صبر کوونکو سره دی.

تفسیر: کله چې ذکر، شکر، او دکفران ترک چې په لمړي آیت کې یې ذکر راغلی دی، ټولو شرعي طاعاتو او منهیاتو ته شامل دی، چې د هغوی په ځای کول ډېر سخت کار دی؛ نو د هغه د سهولت او آسانی لپاره یې دا طریقه را ښوولې ده، چې د) صبر او صلاة (په وسیله، او د هغو د مداومت په ذریعه ټول کارونه په تاسې آسانیږي، او په دې آیت کې دې خبرې ته اشاره ده، چې په جهاد کې زیار (محنت) باسئ ! او په هغه کې صبر لویه درجه لري، چې د هغه ذکر وروسته راځي.

وَلَا تَقُولُوا لِمَن يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِن لَّا تَشْعُرُونَ ﴿١٥٤﴾

او مه وایئ تاسې هغه چا ته چې ووژل شي په لاره د الله (جهاد) کې چې (دوی) مړه دي، (دوی مړه نه دي) بلکه ژوندي دي، ولیکن تاسې نه پوهېږئ (د دوی په ژوندانه).

تفسیر: یعنې هغه څوک چې د الله تعالی په لار کې ووژل شي هغه مړ نه دی، بلکه ژوندی دی، مگر تاسې د هغه په برزخي ژوندانه خبر نه یئ !، او نه یې کیفیت در ښکاره دی، او دا هم د صبر نتیجه ده.

﴿وَلَنَبۡلُوَنَّكُم بِشَيۡءٖ مِّنَ ٱلۡخَوۡفِ وَٱلۡجُوعِ وَنَقۡصٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡوَٰلِ وَٱلۡأَنفُسِ وَٱلثَّمَرَٰتِۗ﴾

او خامخا مونږ آزمویو تاسې په یوه شي چې هغه عبارت دی (ددښمن) له ویرې، او له لوږې (قحط) او له کموالي د مالونو (په راز راز آفتونو سره) او د نفسو (په قتل، موت، مرض، او نورو) او د مېوو (په آسماني او ځمکني آفتونو سره).

**تفسیر:** یا به مراد د الله خوف، د روژې لوږه، د زکات نقصان، د بدن امراض، او د اولاد موت وي چې (ثمرة الفؤاد) یې بولي، لومړی د هغو کسانو ذکر وو، چې د صبر لوړې مرتبې یې حاصلې کړې دي، یعنې «شهیدان»، اوس فرمایي چې: الله تعالی عموما په لړ لړ تکلیف او مصیبت سره وخت په وخت له تاسې څخه امتحان اخلي، او د صبر آزموینه مو کوي، ځکه چې د صابرینو په ډله کې داخلېدل څه آسان کار نه دی، نو له همدې امله یې لا له پخوا څخه تنبیه وفرمایله.

﴿وَبَشِّرِ ٱلصَّٰبِرِينَ ١٥٥ ٱلَّذِينَ إِذَآ أَصَٰبَتۡهُم مُّصِيبَةٞ قَالُوٓاْ إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّآ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ ١٥٦ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيۡهِمۡ صَلَوَٰتٞ مِّن رَّبِّهِمۡ وَرَحۡمَةٞۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُهۡتَدُونَ ١٥٧﴾

او زېری ورکړه صبرکوونکو ته (په جنت سره، صبر کوونکي) هغه کسان دي؛ کله چې ورورسېږي دوی ته څه مصیبت، نو وایي دوی: بېشکه مونږ (مملوک) د الله یو، او بېشکه مونږ هم دغه (الله ته) بیا ورتلونکي یو (په آخرت کې)، دغه کسان په هم دوی ده ثناء او صفت او په نېکه یادونه (له طرفه د) رب د دوی، او مهرباني ده، او دغه کسان هم دوی دي سمه لاره موندونکي (حق ته).

**تفسیر:** د ﴿صَلَوَٰتٞ مِّن رَّبِّهِمۡ﴾ مراد: د الله تعالی لخوا ثناء ویل، د هغه نوم نښان پورته کول، اوچتول، او ځان ته نژدې کول دي، لکه په جلاء الأفهام لابن القیم کې چې راغلي دي (ص٧٨).

﴿إِنَّ ٱلصَّفَا وَٱلۡمَرۡوَةَ مِن شَعَآئِرِ ٱللَّهِۖ﴾

بېشکه صفا او مروه (چې په مکه کې دوه غرونه دي) له نښو (د عبادته) د الله څخه دي.

**تفسیر:** مخکې د قبلې د تحویل او په نورو قبلو باندې د کعبې د افضلیت ذکر وو، اوس دهغه د محل او د حج او عمرې د ادا کولو ذکر فرمایي؛ څو چې د ﴿وَلِأُتِمَّ نِعۡمَتِي عَلَيۡكُمۡ﴾ تصدیق او تکمیل په ښه ډول سره وشي، یا دا چې پخوا له دې یې د صبر د فضیلت ذکر وفرمایه، اوس فرمایي: وګورئ! صفا او مروه چې په (شعائر الله) کې داخل دي، او په حج او عمره کې د دوی په منځ کې له دې سببه «سعي» کول ضروري دي، چې همدا د صابرینو یعنې «بي بي هاجرې» د ځوی «اسماعیل» علیهما السلام لـه آثارو څخه دي.

﴿فَمَنۡ حَجَّ ٱلۡبَيۡتَ أَوِ ٱعۡتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَاۚ وَمَن تَطَوَّعَ خَيۡرٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ١٥٨﴾

نو هر څوک چې (اراده د) حج وکړي د بیت الله یا (اراده د) عمرې (وکړي) نو نشته هیڅ ګناه په ده باندې چې طواف وکړي په دې دواړو، (یعنې ددواړو ترمنځ سعي وکړي) او هر څوک چې وکړي په خپله خوښه څه نیکي نو بېشکه الله شکر قبلوونکی، ښه عالم دی.

**تفسیر:** «صفا» او «مروه» په مکه معظمه کې دوه غرونه دي، د مکې خلق د ابراهیم (علی نبینا وعلیه الصلاة والسلام) له زمانې راهیسې همېشه حجونه کوي، او د حج کولو په وخت کې د دغو غرونو تر منځ سعي کوي، د کفر په زمانه کې کافرانو په دغو غرونو دوه بتان درولي وو، چې د هغو تعظیم به یې کاوه، او داسې به یې ګڼل، چې دا طواف

او سعي د هغو دواړو د تعظيم لپاره دی، کله چې د اسلام پاک دين خپور (خور) شو، او خلق له بت پرستی څنې تائب شول؛ نو داسې خيال وشو، چې د «صفا» او «مروه» طواف د هغو بتانو د تعظيم لپاره وو، نو څرنګه چې د بتانو تعظيم حرام شو، نو ښايي چې د «صفا» او «مروه» تعظيم هم ممنوع شي، ځکه چې دا خبره هغوی ته معلومه نه وه، چې د «صفا» او «مروه» طواف په اصل کې د حج لپاره وو، او کفارو که له خپله جهالته پر دوی باندې بتان درولي وو؛ هغه ترې لرې کړل شول، کله چې د مدينې منورې انصارو د کفر په زمانه کې هم د «صفا» او «مروه» طواف بد ګاڼه، نو داسلام په زمانه کې هم دوی ته د هغوی د طواف په نسبت څه اندېښنه پيدا شوه، او د رسول الله مبارک څخه يې په دې باره کې داسې هدايت وغوښت «مونږ پخوا د «صفا» او «مروه» طواف نه کاوه، او س د هغه په نسبت څه هدايت راکوئ؟» په دې مناسبت دا آيت نازل شو، او دواړو فرقو ته دا وروښوول شول؛ چې د «صفا» او «مروه» تر منځ به سعي طواف کې کومه ګناه او خرابي نشته، بلکه دا په اصل کې د الله تعالی نښې دي، او د هغوی طواف کول په کار دي.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ ۙ

بېشکه هغه کسان چې پټوي (دوی له خلقو څخه) هغه شی چې نازل کړی دی مونږ له ښکاره وو (احکامو او واضحو دلائلو) او د هدايت (خبرې) پس له هغه چې بيان کړي دي مونږ هغه لپاره د خلقو (يعنې بني اسرائيلو) په کتاب (تورات) کې.

تفسير: له دغو خلقو څخه يهودان مراد دي، چې دوی د رسول الله صلی الله عليه وسلم د رسالت تصديق او د قبلې د تحويل خبره او نور چې په په تورات کې وو؛ پټول، او همدا راز هغه کسان چې د دنيوي اغراضو له امله يې د پاک الله حکمونه پټول، هغوی هم د دغه آيت په حکم کې داخل دي.

أُولَٰئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ ﴿١٥٩﴾

دغه کسان چې دي لري کوي دوی لره الله له رحمت خپل، او لعنت وايي پر دوی لعنت ويونکي (له پرښتو، انسانانو، پيريانو، او نورو مخلوقاتو).

تفسير: لعنت کوونکي له جنياتو، انسانانو، ملائکو، بلکه له ټولو ذي روحو شيانو څخه عبارت دی، ځکه چې د دوی د حق پټولو له وباله په عالم (نړۍ) کې قحط، وبا، طاعون، او نورې راز راز بلاګانې خپرېږي (خورېږي)، نو له دې سببه: نه يواځې حيواناتو ته، بلکه تر جماداتو پورې هم تکليف او صدمه ورپېښيږي، نو ځکه ټول کائنات پر دوی باندې لعنت کوي.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٠﴾

مګر هغه کسان چې بېرته وګرځېدل (له شرکه او پټولو د نعمت)، او نېک يې کړ عمل خپل، او بيان يې کړه (حقه خبره) نو دغه کسان (چې دي) رجوع به وکړم زه په رحمت سره په دوی باندې، او همدا زه ښه توبه قبلوونکی، پوره رحم کوونکی يم (دتوبې په منلو او د رحمت په نزول).

تفسير: يعنې که څه هم د دوی د حق پټولو له امله ځينې خلق په ګمراهۍ کې لوېږي، خو کله چې دوی د حق پټولو څخه توبه وباسي، او د حق اظهار په ښه ډول سره وکړي، نو مونږ د لعنت پر ځای په هغوی باندې خپل رحمت نازلوو، ځکه چې مونږ تواب او رحيم يو.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١٦١﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران شي او مړه شوي دي حال دا چې دوی کافران وو (په وخت د مرګ کې)؛ دغه کسان (چې دي) پر دوی باندې دی لعنت د الله او (لعنت) د ملائکو او (لعنت) د خلقو ټولو (یعنې د ټولو هغو مخلوقاتو چې لعنت ته یې اهمیت ورکاوه شي).

**تفسیر:** یعنې هغه څوک چې پخپله حق پټ کړي، یا د بل چا د حق پټولو له سببه ګمراه شي، او تر آخره پورې کافر پاتې شي، او توبه یې په برخه نه شي، نو هغه تل ملعون او جهنمي دی، وروسته له مرګه د هغه توبه نه قبلیږي.

خَالِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿١٦٢﴾

حال دا چې همېشه به وي دوی په لعنت (یا اور) کې، نه به سپکاوه شي له دوی څخه عذاب، او نه به دوی ته مهلت ورکړ شي (د توبې، یا به په رحمت سره ورته نه کتل کیږي).

**تفسیر:** یعنې په دوی باندې به عذاب یو رنګ او دوام لرونکی وي، او داسې به نه کیږي چې د دوی په عذاب کې څه لږوالی پېښیږي، یا کومه شیبه به د هغوی عذاب لږ کیږي.

وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴿١٦٣﴾

او معبود ستاسې معبود یو دی، نشته بل څوک لایق د عبادت مګر همدی خورا (ډېر) مهربانه پوره رحم کوونکی دی.

**تفسیر:** یعنې ستاسې د ټولو حقیقي معبود داسې یو ذات دی، چې د تعدد احتمالات له سره په کې نشته، نو هر هغه څوک چې د هغه له احکامو څخه سر غړوي، هغه بیخي مردود او تباه دی.

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ
وَمَا أَنْزَلَ اللَّهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ
وَتَصْرِيفِ الرِّيَاحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿١٦٤﴾

بېشکه په پیدا کولو د آسمانو او (په پیدا کولو) د ځمکې کې، او په اختلاف د شپې او د ورځې کې (چې اوږدیږي، لنډیږي پر له پسې رڼا او تیاره راځي، یخیږي او ګرمیږي)، او په بېړیو هغو کې چې روانې وي په دریاب کې، په هغه سره چې فائده رسوي خلقو ته، او په هغه څه کې چې نازلې کړي دي الله لـه (طرفـه د) آسمانه له اوبو څخې، نو ژوندی (زرغونه) کړې یې ده په هغو (اوبو) سره ځمکه وروسته د مرګه (وچوالي) د هغې، او خپاره (خواره) کړي یې دي په دې ځمکه کې له هر قسمه خوځېدونکو (حیواناتو) څخه، او په ګرځولو (بدلولو) د بادو کې، او په هغې وریځې چې مسخّره کړی شوې ده په مینځ د اسمان او د ځمکې کې، خامخا دلیلونه دي (په وحدانیت د الله باندې) لپاره د هغه قوم چې د عقل څښتنان (خاوندان) دي.

**فائدة:** په ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ﴾ کې دالوهیت او عبادت د توحید، او په ﴿الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ﴾ کې د صفاتو، ثبوت دی، او په ﴿إِنَّ فِي خَلْقِ﴾ الآیه – کې د ربوبیت د توحید ثبوت دی، چې ددغو ستاینو او صفاتو په سبب د مشرکانو ټولې شبهې په کلي ډول سره رد شوې.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَادًا

اوځینې له خلقو څخه هغه څوک دي چې نیسي بې له الله څخه شریکان (په عبادت کې).

تفسير: يعنې په بنيادمانو کې چې په عقل او شعور کې له ټولو مخلوقاتوڅخې افضل دي، ځينې داسې هم دي، چې سره له ښکاره او سابقه دلائلو بيا هم غير له الله تعالى څخې نور شيان د حق تعالى سره په عبادت کې شريک ګڼي، او د ده جل جلاله سره يې برابروي.

يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ

چې مينه او محبت کوي دوى د هغوى سره لکه چې مينه کوي د الله سره.

تفسير: يعنې يواځې په اقوالو او اعمالو کې خپل شريکان د حق تعالى سره نه برابروي، لکه آن تر قلبي محبت پورې چې د اعمالو د صدور اصل او اساس دى، د دوى شرک او مساوات رسيدلى دى، چې د شرک اعلى درجه ده، او شرک في الأعمال د هغه فرعه او تابع دى.

وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلَّهِ

او هغه کسان چې ايمان يې راوړى دى، ډېر ټينګ دي له جهته د مينې له الله سره.

تفسير: يعنې هغه محبت چې مشرکين يې له خپلو باطلو معبودانو سره لري، مؤمنان له هغه څخې خورا زياته مينه له الله تعالى سره لري، څکه چې د مشرکانو مينه ددنيا په مصائبو کې زائليږي، او د آخرت د عذاب د ليدلو په اثر دوى له خپلو باطلو معبودانو څخې بيخي بېزاره کيږي، لکه چې په وروستي آيت کې راځي، بالعکس د مؤمنانو محبت او مينه له خپل پاک الله سره په راحت او مصيبت، روغتيا او ناروغتيا، په دنيا او آخرت، په پټه او ښکاره کې برابره، او هيڅ تغيير نه مومي، او تل دوامداره او باقي وي، او هم هغه محبت چې اهل الايمان يې له الله تعالى سره لري، له هغه محبت څخې خورا ډېر او زيات دى؛ چې مؤمنان يې له ما سوى الله يعنې انبياوو، اولياوو، ملائکو، عابدانو، صالحانو، علماوو، فضلاوو، آباوو، اجدادو، اموالو، اولادونو، ښځو، دوستانو، دنيا او ما فيها سره لري، څکه چې مؤمنان له الله تعالى سره د هغه د عظمت او شان سره سم بالأصاله او بالاستقلال مينه او محبت لري، او له نورو سره بالواسطه، او د حق تعالى له حکم سره سم له هر يوه سره د هغه د مرتبې او مقام په مېچ (اندازه) مينه کوي.

هو ! د الله تعالى او د ما سوى الله جل جلاله په محبت اومينه کې مساوات او برابري کول، که هر څومره هغه لوى سړى هم وي، نو خالص شرک او د مشرکانو کار دى.

په تعظيم ادب کې زيار کاږي صديق *** د رتبې نه کوي فرق چېرې زنديق

وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾

او که ووينې هغه کسان چې ظلم يې کړى دى (په خپلو نفسونو په شرک سره) په هغه وخت کې چې ووينې دوى عذاب (هلته به وپوهيږي) چې بېشکه ټول قوت خاص الله لره دى ، او بېشکه چې الله سخت عذاب ورکوونکى دى (نو د الله تعالى پرته د بل چا عبادت به يې نه کاوه).

إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿١٦٦﴾

کله چې بېزاره شي هغه کسان چې متبوعان (مشران) دي؛ له هغو کسانو څخه چې تابعان (او کشران) دي، او ووينې دوى عذاب، او منقطع (غوځ) شي په دوى (هغه ټول) اسبابونه (د خپلوى علايق).

وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا ۗ

او وايي هغه كسان چې تابعان وو: كاشكې واى مونږ لره بيا ورتلل (دنيا ته) نو بېزاره به شو مونږ له دې متبوعانو څخه، لكه چې بېزاره شوي دي دوى له مونږ څنې.

كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ ﴿١٦٧﴾

همداسې (لكه چې وښوده پاک الله دوى ته د عذاب سختي او د يوه بل نه بېزاري) وبه ښيي دوى ته الله (ناكاره) عملونه د دوى افسوسونه په دوى باندې، او نه به وي دوى وتونكي هيڅېږې له اور (د دوزخ) نه.

**تفسير:** يعني د هغوى ښې او بدې چارې ټولې د حسرت او ارمان موجبات كيږي، او له هيڅ عمل څنې به دوى ته هيڅ يوه ګټه او فائده ونه رسيږي، او تل به په دوزخ كې اوسيږي، بالمقابل موحدين او د ايمان خاوندان كه د خپلو ګناهونو له سببه دوزخ ته لاړ هم شي؛ په پاى (آخر) كې ترې ووځي، او د خپلو ښو چارو ښه بدل مومي.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَالًا طَيِّبًا وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ۚ

اى خلكو ! خورئ تاسې له (ځينو هغو) شيانو څخه چې په ځمكه كې دي، حلال پاك (بې شبهې)، او پيروي مه كوئ تاسې د (اثر د) قدمونو د شيطان ! (شيطان پسې مه ځئ، او دده په وسوسه د هوى او هوس متابعت مه كوئ).

**تفسير:** عربانو به بت پرستي كوله، او د بتانو په نامه به يې حيوانات سرخوشې ايله (آزاد) پرېښودل، او له هغو ايله خوشې شويو حيواناتو څنې به يې ګټه او فائده اخيستل حرام ګڼل، چې دا هم يو راز شرک دى، ځكه چې د حلال او حرام ټاكل او بېلول دالله تعالى كار دى، او پرته (بغير) له الله تعالى څنې په داسې كارونو كې د بل چا خبرې ګواكې شرک ته تمايل او ترجيح ده، نو له همدې سببه يې په لومړني آيت كې د شرک خرابي بيان كړه، اوس د حلال د تحريم څنې ممانعت فرمايي، چې خلاصه او لنډه يې داده: هر هغه شى چې په ځمكه كې پيدا كيږي، تاسې له هغه څنې خورئ !، په دې شرط چې شرعا حلال، طيب، او روا وي، يعني نه (في نفسه) حرام وي، لكه مرداره او خنزير، او ﴿وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾ يعني هغه ساكښان (ذي روح) چې د هغو د حلالولو په وخت كې پرته د الله تعالى له نامه څنې د بل چا نوم پرې ويلى شوى وي، او د هغو له حلالولو څنې يې غير الله ته قربت مقصود وي، او نه كوم عارضي امر له سببه په هغه كې حرمت پيدا شوى وي، لكه د غصب، غلا، رشوت، او د سود مالونه، چې له دغو ټولو څنې اجتناب او ځان ساتل ضروري دي، او دشيطان پيروي هيڅكله مه كړئ ! چې په خپل سر هر شي چې مو زړه غواړي؛ حلال يې وګڼئ لكه ﴿وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ﴾ او هر شى چې مو زړه غواړي حرام يې وبولئ لكه (بحيره، سائبه، وصيله، او حام).

إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿١٦٨﴾ إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِالسُّوءِ وَالْفَحْشَاءِ وَأَن تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٦٩﴾

بېشكه چې شيطان تاسې لره دښمن دى ښكاره. بېشكه همدا خبره ده چې حكم كوي شيطان تاسې ته په بد او قبيح كار سره (چې عقلا او نقلا منفور وي)، او (امر كوي تاسو ته) چې ووايئ تاسې په الله هغه خبرې چې تاسې پرې نه پوهېږئ.

**تفسير:** يعني مسئلې او شرعي احكام له خپل لورې جوړوئ، لكه چې په ډېرو ځايو كې ليده كيږي، چې سربېره پر جزئي امورو، په اعتقادي امورو كې هم له شرعي نصوصو څخه ستركې پټوئ، او له خپله ځانه نوي حكمونه جوړوئ، او په قطعي نصوصو او د سلفو په اقوالو كې تحريفونه، اړول راړول كوئ.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾

او كله چې وويل شي دوى ته چې: پيروي وكړئ تاسې د هغه حكم چې نازل كړى دى الله (چې قرآن او سنت دى) نو وايي (چې د قرآن پيروي نه كوو) بلكه پيروي كوو د هغه حكم چې موندلي دي مونږ په هغه پلرونه خپل (آيا دوى د خپلوپلرونو متابعت كوي؟) اګر كه وو پلرونه د دوى چې نه پوهېدل په هيڅ شي (د دين له احكامو څخه) او نه يې لاره موندلې وه (حق ته).

تفسير: يعنې دوى وايي چې د حق تعالى د احكامو په مقابل كې، د خپلو پلرونو او نيكونو پيروي او متابعت كوو، او دا هم شرك دى، لكه چې ځينې ناپوهه مسلمانان د كونډو په نكاح او د ښځو د ميراث په نسبت او نورو باطلو رسومو كې هم داسې خبرې كوي، او ځينې كه څه هم په ژبه داسې چتې (بېكاره) او فضولې خبرې نه كوي، مګر د هغوى له عمل څخه دا خبرې ښكاره او څرګندېږي، حال دا چې داسې اقوال او افعال داسلام له اصولو چپ او مخالف دي.

وَمَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا كَمَثَلِ الَّذِي يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ إِلَّا دُعَاءً وَنِدَاءً

او حال د هغو كسانو چې كافران شوي دي (او حق پرست يې حق ته رابلې) لكه حال د هغه چا دى چې ناري وهي هسې يو شي ته، چې نه اورې هيڅ مګر تشه بلنه او غږ.

تفسير: يعنې هدايت ته د كافرانو رابلل داسې دي لكه چې كوم شپون (شپونكى) يا غوبه څريدونكو ساكښانو (ذي روحو) ته په بيديا كې نارې وهي، چې هغوى پرته له آوازه بل په هيڅ شي نه پوهيږي، همدارنګه حال د كافرانو دى، چې نه دوى پخپله پوهيږي، او نه د پوهانو او عالمانو خبرې مني.

صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٧١﴾

(دوى) كاڼه دي، ګونګيان دي، ړانده دي، نو دوى هيڅ عقل نه لري (چې حق ته لاره ومومي).

تفسير: يعنې دا كافران كاڼه دي، چې د حق خبرې بيخي نه اوري، او ګونګيان دي، چې د حق خبرې نه وايي، او ړانده دي، چې سمه لار نه ويني، لنډه يې دا چې: دوى په هيڅ شي نه پوهيږي، ځكه چې د دوى دا درې حواس او قوې فاسدې شوي دي، نو د علم تحصيل، او د پوهې زده كول به څرنګه صورت ومومي؟ .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ وَاشْكُرُوا لِلَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿١٧٢﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى ! (يعنې اى مؤمنانو) خورئ تاسې ! له پاكو حلالو هغوشيانو چې دركړي دي مونږ تاسې ته، او شكر وباسئ ! الله لره (په دغو حلالو شيانو) كه چېرې يئ تاسې چې خاص ده لره عبادت كوئ.

تفسير: اوس پاك الله له كافرو څخه اعراض وفرمايه، او په خاصه توګه يې مسلمانانو ته توجه وكړه، او دوى يې مأمور كړل چې له روا او بې شبهې پاكو شيانو څنې وخوري !، او خپل انعام يې ښكاره كړ، او د شكر د ادا كولو امر يې وفرمايه.

إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ

بېشكه همدا خبره ده چې حرام كړي دي (الله) په تاسې باندې (خوراك) د مردارې.

**تفسير:** مرداره هغه ده چې دا په خپل سر ومري، يعنې حلال نه شي، يا له شرعي طريقې څخه پرته حلال يا ښکار کړای شي، لکه چې زندۍ کړی شي، يا د کوم ژوندي ساکښ (ذي روح) کومه عضوه (غړی) پرې کړی شي، يا په لرګي، تيږې، او ټوپک سره وويشتل شي، يا له پاسه ولوېږي او مړ شي، يا د بل کوم حيوان د ښکر د وهلو په اثر مړ شي، يا يې کوم داړونکي يا څيروونکي ځناور وداړي، يا يې وڅيري، يا د حلالولو په وخت کې قصداً پرې تکبير ونه وايي او مړ شي، دا ټـول سـره په مردارو کې داخل او حـرام دي، البتـه دوه ساکښان (ذي روح) بې له ذبحې مونږ ته حلال دي، چې کب (ماهي) او ملخ دي، او د استثناء دا امر هم د رسول اكرم صلى الله عليه وآله وأصحابه وسلم د حديث په موجب شوی دی.

## وَالدَّمَ

او (حرام کړی دی الله خوراک د) وينې (بهېدونکې).

**تفسير:** له وينې څخه مراد هغه وينه ده چې له رګو څخه وبهېږي، او د ذبحې په وخت کې داري ووهي، او راووځي، پاتې شوه هغه وينه چې په غوښه کې وي، يا ور پورې لګېدلې وي، هغه ناروا نه ده، بلکه حلاله او پاکه ګڼل کېږي، نو که څوک کله غوښه بې له مينځلو (وينځلو) پخه کړي، خوراک يې ناروا نه دی، خو دنظافت او سپېڅلتيا (پاکۍ) له اصولو څخه لرې کار دی، د «ينې» او «توري» (چې ترلې شوې ويني دي) خوراک د رسول اكرم صلى الله عليه وآله وأصحابه وسلم د حديث په موجب حلال او روا شوي دي.

## وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ

او (حرام کړی دی الله خوراک د) غوښې د خنزير.

**تفسير:** خنزير ژوندی وي که مړ، له شرعي قاعدې سره سم حلال شوی وي که نه، په هر صورت سره قطعاً حرام دی، او د خنزير ټول اجزا لکه غوښه، پوستکی، هډوکي، ويښتان، نوکان، پلې، غړي، وازده، او نور ټول ناپاک دي، او له هغوی څخه فائده او کار اخيستل ناروا او حرام دی.

کله چې په دې ځای کې د خوراکي شيانو ذکر دی نو څکه يواځې د غوښې حکم راښودلی شوی دی، مګر په دې خبره باندې د ټول امت اجماع ده، چې خنزير بېشکه «نجس العين» دی، څکه چې په بېغيرتي، بې حيايي، او په حرص او نجاستونو ته په رغبت کې له ټولو ساکښانو (ذي روحو) څخه وړاندې دی، او له همدې امله الله تعالى د خنزير په نسبت فرمايي: ﴿فَإِنَّهُ رِجۡسٌ﴾ نو د هغه هيڅ يو جز نه پاک دی، او نه د هيڅ قسم فائدې اخيستلو وړ دی، هغه کسان چې د خنزير غوښې ډېرې خوري، يا يې له نورو اجزاوو څخه فائدې اخلي، په هغو کې هم د خنزير رذيله افعال ډېر په واضح ډول سره ليدل کېږي.

## وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِۖ

او (حرام کړی دی الله خوراک د) هر هغه حلال کړی شوی چې آواز کړی شوی وي په هغه باندې (په وخت د ذبحې کې) بې له پاک الله.

**تفسير:** له ﴿وَمَآ أُهِلَّ بِهِۦ لِغَيۡرِ ٱللَّهِۖ﴾ څخه دا مطلب دی چې: پر دې ساکښانو (ذي روحو) باندې پرته د الله تعالى له نامه د بل کوم بت يا بل شي نوم واخيستل شي، يعنې پرته د الله تعالى له نامه د کوم بت، جن، خبيث روح، پير، مرشد، نبي، يا دنورو په نامه وټاکي (مقرر کړي)، او د هغه ساکښ (جاندار) روح هغه ته نذر کړي، د هغه د تقرب يا رضا غوښتنې په نيت يې ذبح کړي، او محض د ده دخوښې په غرض يې د هغه ساکښ (جاندار) ساه اخيستل مقصود وي، نو ددې ټولو

حیواناتو د غوښو خوړل حرام دي، که څه هم د دوی د ذبحې په وخت کې تکبیر هم وویل شي، او د الله تعالی لوی نوم هم پرې واخیستل شي، ځکه چې پر ته د روح له پیدا کوونکي څخه بل چا ته د روح نذر او نیاز کول له سره درست نه دی، نو د هر جاندار روح چې «غیر الله» ته نذر کړی شي، د هغه د مرداری او خباثت مرتبه د مردارې له خباثت څخه زیاته ده، ځکه چې په مرداره کې فقط دومره خرابي شته، چې د هغه روح د پاک الله په نامه نه دی وتلی، او دلته د هغه روح د غیر الله په نامه نذر شوی دی، چې عین شرک دی، هماغسې چې خنځیر او سپی د ذبحې په وخت کې د تکبیر ویلو له امله نه حلالیږي، په مرداره باندې هم د الله تعالی د نامه له ویلو ځنې څه فایده نه حاصلیږي، همداسې د هر جاندار روح چې غیر الله ته نذر شي، یا یې په نامه کړی وي، نو د ذبحې په وخت کې په هغه باندې د الله تعالی د نامه له اخیستلو ځنې له سره هیڅ فایده نه حاصلیږي، او نه حلال کیدای شي، که د غیر الله په نامه باندې له ټاکلو څخه وروسته نذر کوونکی له خپل دې نیت ځنې رجوع او ترې توبه وکړي، او بیا یې ذبحه کړي، نو د هغه په حلالوالي کې هیڅ شک او شبهه نه پاتې کیږي.

عالمانو تصریح فرمایلي دي: که د کوم پاچا د راتګ په وخت کې د تعظیم په نیت ساکښ (ذي روح) ذبح کړ شي، یا د کوم جن (پیري) له اذیت څخه د نجات له امله، د هغه په نامه کوم ذي روح حلال کړ شي، یا د توپ ویشتلو، یا د نذر پخولو، یا د کوم نیاز ورکولو په وخت کې ساکښ (ذي روح) ذبح کړ شي، اګر که د ذبحې په وخت کې د الله تعالی نوم هم پرې یاد کړی شي، دا جاندار بیخي مردار او حرام او فاعل یې سخت ګناهګار دی.

په حدیث شریف کې هم راغلي دي: «لعن الله من ذبح لغیر الله» یعنې په هغه چا د پاک الله لعنت دی چې غیر الله ته د تقرب او تعظیم په نیت ذي روح ذبح کړي؛ که د ذبحې په وخت کې د الله تعالی نوم پرې یاد کړي، یا یې یاد نه کړي، هو ! په دې کې هیڅ حرج نشته چې ذي روح د الله تعالی په نوم ذبح، او د هغه غوښه فقیرانو ته ورکړي، او ثواب یې کوم قریب ته وروبخښل شي، ځینی کاره تلونکي په هسې مواقعو کې داسې پلمې جوړوي چه دپیرانو او نورو په نیازونو او نذرونو کې زموږ مقصود دادی چې فقیران ماړه شي، او ثواب یې مړو ته صدقه شي، نو لومړی باید دوی وپوهیږي چه دالله تعالی په مخکې داسې پلمې پرته له ریا نه بل څه نفع نه رسوي، دوهم داچې که ددغه نذر شوي حیوان پر ځای هغو سره غوښه واخیستل شې، او فقیرانو ته ورکړل شې او یا هم ورباندې پخه وخوړل شي نو دغه خیرات او صدقه به پرې ادا شي آیا دا ښه کار نه دی.

فَمَنِ اضۡطُرَّ غَيۡرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِ

نو هغه څوک چې اړ (ضرورتمند) شي (د دې حرامو خوړلو ته) حال دا چې نه ظلم کوونکی او نه تجاوز کوونکی وي (له قدر د کفافه) نو نشته ګناه په ده باندې.

تفسیر: یعنې دا ذکر شوي شیان خو حرام دي، مګر که څوک د لوږې له امله مرګ ته نږدې شوی وي، او د ناچارۍ په وخت کې یې وخوري، په داسې سړي باندې هیڅ ممانعت نشته، په دې شرط چې هیڅ نافرماني او زیاتوالی ونه کړي، نا فرماني داده چې: د اضطرار او ناچارۍ له پېښیدلو څخه پخوا د هغو د خوړلو لپاره ملا وتړي. زیاتوالی دا دی چې د ضرورت له اندازې ځنې ډېر وخوري، او خپله ګېډه ښه پرې وپړسوي، بلکه ښایي چې دومره وخوري، چې ونه مري، او یا یې هم له ځان سره زخیره او بل وخت ته وساتي.

إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٧٣﴾

بېشکه چې الله لوی بخښونکی پوره رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعنې پاک الله ډېر لوی بخښونکی دی، د بندګانو هر راز ګناهونه بخښي، نو بیا به نو دداسې ناچار او مضطر سړي ګناه ولې نه بخښي؟ !، او په خپلو بندګانو باندې ډېر مهربانه دی، چې د مجبورئ په حالت کې یې دوی ته ښکاره اجازه ور کړې ده.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ

بېشکه هغه کسان چې پټوي (دوی) هغه څه چې نازل کړي دي الله چې کتاب دی.

تفسیر: یعنې هغه حکمونه چې الله تعالی د حلالو او حرامو په نسبت نازل کړي دي، یهودانو پټ کړل، او له خپل لوري یې په هغو کې زیاتوالی او کموالی و کړ، لکه چې په پخواني آیت کې ذکر شو، همداسې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه صفتونه چې په آسماني کتابونو کې لیکلي شوي وو، دوی پټ کړل، او په خپله خوښه یې تغییر په کې و کړ، چې دا دواړه لویه ګناه ده.

وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا

او دوی (اخلي) د پټولو په عوض کې قیمت لږ.

تفسیر: یعنې د الله تعالی په نافرماني او د خلق الله په ګمراهي باندې یې بسوالی ونه کړ، بلکه د هغه حق پټولو په عوض کې به یې له هغو کسانو څخه چې د ګمراهۍ په کندو کې یې غورځول؛ رشوت او بډې هم اخیستلې، او په هغو مالونو باندې به یې د هدیې، نذرانې، او شکرانې نومونه ایښودل، حال دا چې داسې حرامخوري د مردارو او د خنزیرو د خوړلو څخه هم ډېره بده ده، نو اوس ښکاره ده چې د هسې بدو حرکاتو سزا هم خورا (ډېره) سخته ده، لکه چې وروسته بیانیږي.

أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ

نو دغه کسان (چې د حق پټوونکي دي) نه خوري (نه اچوي دوی) په ګېډو خپلو کې مګر اور (د دوزخ او د اور موجبات).

وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او نه به خبرې و کړي له دوی سره الله په ورځ د قیامت کې (په خوښۍ سره).

تفسیر: له دې آیت څخه داسې شبهه لوېدی شي، چې له نورو آیتو څخه هسې ښکاري چې الله تعالی به د قیامت په ورځ کې له دوی سره کلام کوي، نو دلته د کلام له نه کولو څخه مطلب څه دی؟ جواب: یعنې د لطف او مرحمت کلام به له دوی سره نه کوي، او د تخویف، تذلیل، تهدید، او وعید په ډول به له دوی سره غږیږي، چې له دې غږېدلو څخه به دوی ته ډېر رنړ او تکلیف پېښیږي.

وَلَا يُزَكِّيهِمْ

او نه به پاک کړي (الله) دوی (له کفره).

تفسیر: یعنې اهل د ایمان هر څومره چې ګناهګار وي، نو بیا هم په دوزخ کې د خپلې ګناه په اندازه یوه ټاکلې موده تېروي، او هر کله چې له ګناه څخه پاک شي، خامخا جنت ته داخلیږي، پر ته له کفارو چې هغوی تل تر تله په اور کې پاتې کیږي، او بیخي نه پاکیږي، او د جنت د داخلېدلو وړ او لایق نه ګرځي، ځکه چې دوی د شرکیه امورو په سبب

داسې «نجس العين» گرځېدلي وي، چې هغه نجاست په هيڅ ډول له دوی ځنې نه جلا (جدا) کيږي، او د عاصي مسلمان حال داسې وګڼئ ! لکه چې په يوه پاک شي نجاست لوېدلی وي، هر کله چې هغه زايل شي، نو هغه شي بيا پاکيږي.

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾

او دی دوی لره عذاب دردناک.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ

دوی هغه کسان دي چې پېرودلې (اخيستې) (غوره کړې) يې ده ګمراهي په بدل د هدايت، او عذاب په بدل د مغفرت کې.

فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾

نو (ځای د تعجب دی چې) څومره صبر کوونکي دي دوی (يعنې کفار) په اور ( د دوزخ).

تفسير: يعنې په خپله خوښه د اور د ننوتلو موجبات اختياروي، ګواکې اور د دوی په نېز دومره ډېر مرغوب او محبوب دی، چې په خپلو ځانونو او مالونو يې اخلي، که نه په دې خبره باندې خو هر څوک پوهيږي چې د اور په عذاب باندې صبر کول څرنګه دی؟ .

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِي الْكِتَابِ لَفِي شِقَاقٍ بَعِيدٍ ﴿١٧٦﴾

دا (عذاب دوی لره) ځکه دی چې بېشکه الله نازل کړی دی کتاب په رښتيا سره، او بېشکه هغه کسان چې اختلاف يې کړی دی په کتاب کې خامخا په (هسې) مخالفت کې دي (چې له حقه) لرې دي.

لَّيْسَ الْبِرَّ أَن تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ

نه ده نيکي (يواځې دا کار) چې وګرځوئ مخونه خپل (په لمانځه کې) طرف د مشرق يا مغرب ته.

تفسير: «غوره او ښه نيکي چې د مغفرت او هدايت لپاره کافي وي، يواځې دا نه ده، چې تاسې تش خپل مخونه په لمانځه کې د مشرق يا مغرب په لوري وګرځوي، او د صحيحو عقايدو او ضروري اعمالو بيخي پروا ونه کړئ».

وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالْكِتَابِ وَالنَّبِيِّينَ وَآتَى الْمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِ ذَوِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَالسَّائِلِينَ وَفِي الرِّقَابِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَالْمُوفُونَ بِعَهْدِهِمْ إِذَا عَاهَدُوا ۖ وَالصَّابِرِينَ فِي الْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ وَحِينَ الْبَأْسِ ۗ

وليکن غوره نيکي (نيکي) د هغه چا ده چې ايمان يې راوړی وي په پاک الله او (ايمان يې راوړی وي) په ورځ آخري، او په (ټولو) پرښتو، او په (ټولو) کتابو، او (ايمان يې راوړی وي) په (واړو) انبياوو، او ورکوي (خپل) مال سره د محبت د مال نه (فقيرانو) خپلوانو ته، او (ورکوي) خپل مال (فقيرانو) يتيمانو ته او مسکينانو ته، او (ورکوي خپل مال) مسافرانو ته او نادارو سوالګرو ته، او په آزادولو (د مريو) کې، او سم دروي (په ترتيب ادا کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ (خپل)،

او وركوي زكات، او (بل خاوند دنېكۍ) وفا كوونكى دى په وعدو خپلو كله چې دوى وعده كوي (له خالق يا له مخلوق سره)، او (صفت كوو د) صبر كوونكو په سختيو او په رنځونو كې او په وخت د جنګ (په لاره د پاك الله) كې.

تفسير: يعني هغه نيكي او ښېګڼه دهدايت او مغفرت سبب كيداى شي چې په ټولو ايمانياتو ايمان ولري، او هم ددين نور اركان پر ځاى كړي.

كله چې يهودان او نصرانيانو په دغو ښو عقايدو، اعمالو او اخلاقو كې قاصر او ناقص وو، او په راز راز ډولو يې په دې ستايلو صفاتو كې خلل او نقصان پيښاوه، لكه چې په قرآني آيتونو كې دغه ذكر شته، نو اوس كه يهودان او نصرانيان يوازې د قبلې په استقبال باندې نازيږي، او خپل ځانونه د هدايت په طريقې باندې مستقيم ګڼي، او ځانونه د مغفرت لايق بولي، نو دا د هغوى ناپوهي او چټي (بېكاره) خيال دى، تر هغه پورې چې دا كتابيان په دغو انتقاداتو، اخلاقو او اعمالو چې په دې كريمه آيت كې مفصلا ذكر شوي دي ټينګ ونه دريږي، او عمل پرې ونه كړي، يوائې د قبلې له استقبال څخه هغوى ته هدايت نه په برخه كيږي، او نه د الله تعالى له عذابه څخه نجات مومي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ صَدَقُوا ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾

او دغه (ستايلي شوي) هغه خلك دي چې صداقت يې كړى دى (په دين، متابعت دحق، او غوښتنې د نېكۍ كې) او دغه كسان همدوى دي پرهېزګاران (ځان ساتونكي له ناوړو (بدو) اعمالو څخه).

**تفسير:** يعني هغه خلك چې په ذكر شويو اعمالو، اخلاقو او اعتقاداتو سره متصف دي، همدغه خلك په اعتقاداتو، ايمان او دين كې، يا په خپل قول او اقرار كې، يا په خپلواخلاقو او اعمالو كې رښتوني دي، يا له ګناه او خرابو خبرو څنې، يا د الله تعالى له عذاب څخه ځان ژغورونكي (ساتونكي) دي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى ۖ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو !) فرض كړى شوى دى په تاسو باندې قصاص (برابروالى) په وژلي شويو كې (كه عمدا وي).

**تفسير:** د جاهليت په زمانه كې په عربو او يهودانو كې داسې دستور وو، چې د شريف النسب كسانو د وژل شويو غلامانو په بدل كې به يې د كمزور نسبه خلقو آزاد سړى، او د شريفانو د وژل شويو ښځو په بدل كې به يې نارينه، او د يو آزاد شريف سړي په بدل كې به يې دوه تنه قصاصول او وژل، نو پاك الله په دې آيت كې داسې حكم و فرمايه چې: «اى ايمان لرونكو ! مونږ په تاسې باندې په مقتولينو كې برابري او قصاص فرض كړى دى»، د «قصاص» معنى په لغت كې برابري او مساوات دى، نو دا دستور چې تاسې له ځانه ايستلى دى، چې د شريف نسب او د كمزورى نسب په منځ كې فرق كوئ، خوشې او فضول كار دى.

**فائده:** په ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ كې اشاره ده، چې يهودان او نور كسان چې په كوم دستور باندې په قصاص عمل كوي، هغه د دوى بې بنياده ايجاد دى، چې د الله تعالى له احكامو څنې بيخي چپ (غلط) دى، چې د دوى له هسې چارو څنې دا راښكاريږي، چې دوى د پخوانيو ياد شويو اصولو له كبله (وجهې) نه په كتابونو، او نه په پيغمبرانو په سم ډول سره ايمان لرونكي دي، او نه د الله تعالى په عهد باندې وفادار دي، او نه د سختۍ او مصيبت په حالت كې له صبر او تحمل سره څه علاقه لري، او نه د خپل كوم عزيز او قريب د وژلو په وخت كې له صبر او تحمل

څخه کار اخلي، او نه د نفسي غوښتنو څخه ځان ژغوري (ساتي)، بلکه د الله تعالی له احکامو او دانبیاوو له ارشاداتو، او د کتاب الله له حکمونو څخه غاړه غړوي، او د بېګناهو خلقو په وژلو حکم ورکوي.

اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ

اصیل په اصیل باندې (قصاصیږي).

تفسیر: دا توضیح د هغې برابرۍ دې چې حکم یې صادر شو، مطلب یې دا دی: د هر آزاد نارینه په «قصاص» کې یواځې همغه یو آزاد نارینه وژل کیدی شي، چې د هغه وژونکی دی، داسې نه چې د یوه قاتل په عوض کې له یوې قبیلې څخه دوه تنه یا زیات له هغو څخه په خپله خوښه ووژل شي.

وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ

او مریی په مریي باندې (قصاصیږي).

تفسیر: یعنې د هر مقتول غلام په مقابل کې همااغه غلام وژل کیږي، چې قاتل یې دی، داسې به نه کیږي چې د کوم شریف سړي د غلام په قصاص کې دهغه قاتل په ځای چې د کم نسبو خلقو غلام دی، کوم آزاد سړی ووژل شي.

وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى

او ښځه په ښځه باندې (قصاصیږي).

تفسیر: یعنې د هرې ښځې په «قصاص» کې یواځې همغه ښځه وژل کیږي، چې د هغې قاتله ده، داسې نه شي کېدی، چې د کومې شریفې ښځې په «قصاص» کې هغه کم نسبه ښځه ژوندی پرېښوده شي، چې قاتله ده، او د دې له تبر څخه کوم نارینه وواژه (قتل) شي.

خلاصه یې داسې شوه چې هر آزاد د بل آزاد سره، او هر غلام د بل غلام سره برابر دی، نو ښایي چې په قصاص کې هم مساوات وي، او هغه تعدي او تجاوز چې کتابیانو او د عربو جاهلانو کاوه، بیخي ممنوع دی.

فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ

نو هغه څوک چې عفوه وکړه شي (مصلحتا) ده ته له (قصاصه د اسلامي) ورور د ده نه څه شی، نو لازمه ده (په دې عفو کوونکي) مطالبه د دیت (له قاتله) په ښه وجه سره، او ورکول (د دیت دي) هغه (عفوه کوونکي) ته په ښه وجه سره.

تفسیر: یعنې که د مقتول له وارثانو څخه کوم وارث خپل حق وبخښي، نو قاتل نه پرې قصاصیږي، بلکه ګورو به چې هغو وارثانو په څه ډول سره هغه قاتل بخښلی دی؟ بې له مالي معاوضې څخه یواځې د ثواب په غرض؟ یا د شرعي دیت په مقابل کې؟ یا د مصالحې په توګه د څه مال په مقابل کې؟ یعنې له «قصاص» څخه څرنګه تېر شوی دی؟ او د هغه په مقابل کې په څه شي راضي شوی دی؟ په اول صورت کې قاتل د وارثانو له مطالبې څخه بیخي خلاصیږي، او په نورو صورتونو کې قاتل لره ښایي چې هغه معاوضه په ډېر ممنونیت او خوښې سره ادا کړي !.

ذٰلِكَ تَخْفِيْفٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ

دا کار (د قصاص جواز یا دیت یا عفوه) آساني ده له (طرفه) د رب ستاسې، او مهرباني ده (چې اختیار یې تاسې ته درکړ).

تفسير: يعني دا اجازه چې «په قتل عمد» کې که غواړئ قصاص واخلئ، که غواړئ ديت واخلئ، که مو زړه غواړي ويې بخښئ، دا د پاک الله له خوا تاسې ته يو لوی سهولت او خورا (ډېره) مهرباني ده، يعني د مقتول په وارثانو او قاتلانو په دواړو باندې داسې يوه اساني او لوربينه (پېرزوينه) ده، چې په پخوانيو خلقو باندې نه وه، لکه چې په يهودانو «قصاص» او په نصرانيانو «ديت» يا عفو مقرره وه.

فَمَنِ اعْتَدٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهٗ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۸﴾

نو هر چا چې زياتوالی وکړ (په ظلم او وژلو د قاتل) وروسته له دې فيصلې (چې ديت يا عفوه ده) نو ده لره دی عذاب دردناک (د دوزخ په عقبی کې، او قصاص په دنيا کې).

تفسير: يعني که وروسته له دې تخفيف او رحمت څخه هم څوک بيا مخالفت او د جاهليت په دود (رواج) او دستور باندې تګ کوي، يا د عفوې او ديت له منلو څخه وروسته قاتل وژني، نو ده ته په آخرت کې سخت عذاب دی، يا اوس هم هغه وژل کيږي.

وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ

او تاسې لره دی په قصاص کې (لوی) ژوندون.

تفسير: يعني اګر که «قصاص» په ښکاره سره سخت او درونډ ښکاري، مګر پوهان ښه پوهيږي، چې دا حکم د يو لوی ژوندون سبب دی، ځکه چې هيڅوک د «قصاص» د ويرې د بل قتل ته هيڅکله اقدام نه کوي، نو ددې له امله د دواړو ځانونه محفوظ پاتې کيږي، او د قصاص په وسيله د قاتل او مقتول د دواړو ټبرونه هم له وژلو او د وينې له تويولو او بديو څخې محفوظ او مطمئن کيږي.

په عربو کې (لکه دپښتنو په شان) داسې يو دود (رواج) او دستور وو چې هغوی به د قاتل او غير قاتل فرق نه کاوه، او په هر چا باندې به يې چې لاس بر کېده؛ هماغه به يې واژه، او په دواړو ډلو کې به دهمدې له امله تل جنګ او جګړه وه، او د يوه تن د وينې د تويولو په سبب به په زرهاوو کسان وژل کېدل، کله چې د اصلي قاتل څخه «قصاص» واخيستل شي، نو دا ټول انسانان محفوظ او مصون پاتې کيږي.

يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

ای خاوندانو د عقلونو ! لپاره ددې چې تاسې ځان وساتئ (له ناحقو وينو څخه).

تفسير: يعني د «قصاص» له وېرې د بل چا له وژلو څخې ځانونه وساتئ، يا خپل ځانونه د «قصاص» په سبب د آخرت له عذابه وساتئ، يا کله چې تاسې ته د «قصاص» د حکم حکمت در څرګند شو، نو د هغه له مخالفت څخې چې د «قصاص» ترک دی؛ ځانونه وساتئ !.

كُتِبَ عَلَيْكُمْ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ اِنْ تَرَكَ خَيْرًا ۖ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۸۰﴾

فرض کړی شوی دی په تاسې باندې کله چې حاضر شي يو له تاسې ته (اسباب) د مرګ؛ که پرې ايښې يې وي څه مال: وصيت کول لپاره د مور او پلار او (نورو) خپلوانو په ښه انصاف سره، دا حکم لازم دی په پرهيزګارانو باندې.

تفسير: په خلکو کې داسې دود (رواج) اودستور وو، چې د مړي ټول مال به يې د هغه ښځې او اولادې ته ورکاوه، بلکه مخصوصا به هلکانو ته ورکاوه کېده، مور او پلار او نور خپلوان به له هغه څخه بې برخې پاتې کېدل، په دې آيت کې ارشاد وشو چې: مور او پلار او ټولو خپلوانو ته په انصاف سره وصيت کول پکار دي، او په مړ کېدونکي (محتضر) باندې سم له هغه سره وصيت کول فرض شول، او دا وصيت تر هغه وخته پورې فرض وو؛ چې د ميراث آيت نه وو نازل شوی، کله چې د (النساء) په سورت کې د ميراث احکام نازل شول، او پاک الله د ټولو برخې بيان کړې، نو اوس په ميت باندې په خپله متروکه کې وصيت فرض نه دی، او ضرورت ورته نشته، هو ! د مستحب په اندازه منلی شوی دی، خو د وارث لپاره وصيت کول جائز نه دي، او هم د مال له يوه ثلث څخه زيات وصيت کول نه دي روا، او که وصيت د سړي د پور (قرض)، امانت، وديعت، او نورو راکړو ورکړو په متعلق وي؛ نو د هسې چارو وصيت اوس هم فرض دی.

فَمَنۢ بَدَّلَهُۥ بَعۡدَ مَا سَمِعَهُۥ فَإِنَّمَآ إِثۡمُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يُبَدِّلُونَهُۥٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٞ ﴿١٨١﴾

نو هر چا چې بدل کړ دا وصيت وروسته له هغه چې وايې وربېده هغه، نو همدا خبره ده چې ګناه د دې (بدلولو) په هغو کسانو باندې ده چې بدلوي دا (وصيت) بېشکه چې الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه پوهيدونکی دی (په ټولو احوالو).

تفسير: يعنې مړي خو له انصاف سره سم وصيت وکړ او مړ شو، مګر ورکوونکي (وارث) په هغه وصيت باندې عمل ونه کړ، نو په دې صورت کې په مړي باندې هيڅ ګناه نشته، مړي خو خپل فرض ادا کړی دی، او هغه کسان ګناهګار کيږي چې له وصيت څخه چپ (غلط) او مخالف کار کوي.

فَمَنۡ خَافَ مِن مُّوصٖ جَنَفًا أَوۡ إِثۡمٗا فَأَصۡلَحَ بَيۡنَهُمۡ فَلَآ إِثۡمَ عَلَيۡهِۚ

نو هغه څوک چې وېرېږي له وصيت کوونکي څخه د ظلم (په خطا سره) يا د ګنا (په قصد سره) نو اصلاح وکړي په مينځ د دوی (د موصي او موصی له) کې، نو نشته هيڅ ګناه په ده باندې.

تفسير: يعنې که چاته د مړي په وصيت کې داسې شبهه ور ولوېږي، يا يوه شي چې دا مړی له کوم سببه غلط شوی دی، او بې ځايه يې د کوم سړي رعايت کړی دی، او د بل سړي حق يې تر پښنو لاندې کړی، يا يې د پاک الله له حکم څخه مخالفت کړی دی، او دا مصلح د وارثانو په مينځ کې د شريعت له حکم سره سمه برابره مصالحه وکړي، نو په دغه مصلح باندې هيڅ ملامتي او ګناه نشته، او په وصيت کې داسې تغيير او تبديل جايز بلکه بهتر دی.

إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ﴿١٨٢﴾

بېشکه الله ښه بخښونکی پوره رحم کوونکی دی (په هغه چا چې د الله د احکامو په اجراء کې ډېر احتياط کوي).

تفسير: يعنې حق تعالی ګناهګاران بخښي، نو هر څوک چې د اصلاح په غرض يوه خرابي له مينځه لرې کوي، ده ته هرومرو مغفرت کوي، يا يې معنی داده چې د هغه وصيت کوونکي بخښونکی دی، چې نا جائز وصيت يې کړی وي، او بيا په خپل نا جايز وصيت باندې پوه شوی وي، او له هغه وصيت څخه په خپل ژوند کې بېرته ګرځېدلی وي.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ كُتِبَ عَلَيۡكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ﴾

اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (اې مؤمنانو !) فرض کړی شوې ده په تاسې باندې روژه؛ لکه چې فرض کړی شوې وه په هغو کسانو چې پخوا له تاسې څخه وو (لکه پخواني امتونـه او پيغمبـران تر آدمه پورې).

﴿لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ١٨٣﴾

لپاره د دې چې تاسې ځان وساتئ (له ګناهونو څخه او پرهېزګاران شئ، ځکه چې روژه د شهواني قوې ماتوونکې ده).

تفسير: يعنې روژه مسلمان د نفسي خواهشونو پرېښودلو سره عادي کوي، او په دې وسيلې سره کولی شي چې خپل نفس له هغو نفساني خواهشونو او شرعي محرماتو څخه وساتي، چې نفس ته ډېر عزيز او ګران وي، روژه د انسانانو په نفسونو کې د شهواني قواوو په ضعيفولو کې ډېر ښه اثر کوي، او په انسانانو کې د تقوی او پرهېزګارۍ روحيه تقويه کوي، په روژه کې لوی حکمت: د سرکښ نفس اصلاح، او د شريعت د هغو احکامو آساني او سهولت دی، چې د هغو کول پر نفس باندې ګران او درانه وي، تر څو چې روژتي متقي شي.

﴿أَيَّامٗا مَّعۡدُودَٰتٖۚ﴾

يو څو ورځې شمېرلې شوې (لږ چې د رمضان ۲۹ يا ۳۰ ورځې دي).

﴿فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٖ فَعِدَّةٞ مِّنۡ أَيَّامٍ أُخَرَۚ﴾

پس هر څوک چې وي له تاسې څخه ناجوړ يا وي په سفر (او روژه وخوري) نو (پر ده باندې لازم دي روژه نيول) په شمار (د خوړليو شويو ورځو) له ورځو نورو.

تفسير: بيا په دې لږه موده کې يې دومره سهولت او آساني فرمايلې ده، چې که څوک داسې ناروغ وي، چې روژه نيول ورته تکليف پېښوي، يا مسافر وي، نو واک او اختيار لري چې روژه ونه نيسي، بيا دې د هغو ورځو قضايي وروسته له رمضان المبارک څخه ونيسي، چې په رمضان المبارک کې يې د معذرت له کبله (وجهې) خوړلې وې، خوښه يې چې دا قضايي جلا جلا (جدا جدا) راوړي او که يو ځای.

﴿وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ فِدۡيَةٞ طَعَامُ مِسۡكِينٖۖ﴾

او په هغو کسانو باندې چې د روژې نيول طاقت نه لري فديه ورکول دي، (يا) او په هغو کسانو باندې چې د روژې نيولو طاقت لري فديه ورکول دي (او دا حکم په اول کې وو بيا منسوخ شو) طعام د يوه مسکين (د يوې روژې په برابرې).

تفسير:

(۱) د ﴿يُطِيقُونَهُۥ﴾ ترجمه په «چې طاقت نه لري» سره په دې سبب ده، چې همزه لپاره د سلب شي، يا د «لا» کلمه په کې مقدره شي، يعنې چې طاقت ترې سلب شوی وي لکه شيخ فاني.

(۲) او د ﴿يُطِيقُونَهُۥ﴾ ترجمه په «طاقت لري» سره بنا په ظاهر د آيت سره ده، يعنې هغه خلق چې د روژې نيولو طاقت لري، خو په اول د اسلام کې د بيخي عادت نه لرلو په سبب، دوی ته د يوې کاملې مياشتې

پرله پسې روژه نيول ډېر ګران او دروند کار وو، نو د دوی د آسانۍ لپاره داسې فرمايل شوي وو چې: که تاسې ته کوم عذر لکه مرض يا سفر په مخ کې نه وي، مګر يواځې د عادت نه لرلو په سبب تاسې ته روژه سخته وي، نو تاسې اختيار لرئ چې روژه نيسئ، يا دروژې فديه ورکوئ. د يوې روژې فديه يوه مسکين ته په مړه ګېډه د دوه وختو طعام ورکول دي، بيا نو کله چې خلق له روژې سره عادي شول، دا حکم منسوخ او اجازه پاتې نه شوه، چې ددې نسخې بيان په ورستني آيت ﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ کې راځي، ځينې له ﴿طَعَامُ مِسْكِينٍ﴾ څخه «صدقة الفطر» هم مرادوي، چې په دې تقدير سره يې معنی داسې کيږي «هغه کسان چې د فديې ورکولو طاقت لري، دوی دې د يوه مسکين د خوراک په اندازه طعام ورکړي !» چې اندازه يې د خوراکي شيانو يو پيمانه ده، په دغه تقدير لکه اوله ترجمه دا آيت منسوخ نه دی، هغه خلق چې اوس هم داسې وايي: «خلق په رمضان کې اختيار لري چې روژه نيسي يا په فديه اکتفاء کوي، او روژه قطعي حکم نه دی» نو دا د جهل او ناپوهۍ وينا ده، يا يې ويونکي بې دين دي.

﴿فَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ﴾

پس هر څوک چې پخپله خوښه (زيادت) وکړي کومه نيکي کې، نو دغه بهتره ده ده لره.

تفسير: يعنې د يوې ورځې له خوراک څخه زيات يوه مسکين ته ورکړي، يا د څو تنو مسکينانو ګېډې مړې کړي، نو سبحان الله دا ډېره ښه ده.

﴿وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝﴾

او روژه نيول ستاسې (سره د افطار له رخصته) ډېر بهتر دي تاسې ته (له خوړلو څخه) که چېرې يئ تاسې چې پوهيږئ (دروژې په فضيلت).

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنَاتٍ مِّنَ الْهُدَىٰ وَالْفُرْقَانِ﴾

مياشت د روژې هغه مياشت ده چې نازل کړی شوی دی په دې کې قرآن چې هدايت دی لپاره د خلقو، او دليلونه دي ښکاره (له جنسه د هغو شيانو) چې هغه لاره ښيي، او بېلوونکی د حق او باطل دی.

تفسير: پاک قرآن رمضان المبارک کې له لوح محفوظ څخه اول آسمان ته ټول سره يو ځای نازل شوی دی، بيا له هغه ځای څخه له ضرورت سره سم او د احوالو په مقتضی په محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم په (۲۳) کلونو کې ټوټه ټوټه (لږ لږ) نازل شوی دی، او «جبريل عليه السلام» د سيد المرسلين خاتم النبيين صلی الله عليه و علی آله وصحبه وسلم په حضور په هر رمضان المبارک کې د نازل شوي قرآن عظيم ختم کاوه، او بيا بيا يې د تکرار په ډول ځمونږ رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته اوراوه، چې له دغو ټولو حالاتو او خبرو څخه د رمضان المبارک فضيلت او له قرآن عظيم الشان سره د هغې مناسبت او خصوصيت ښه ښکاريږي، او د همدې له امله په همدې مياشت کې «تراويح» هم مقررې شوي دي، نو ښايي چې په دې مياشت کې د پاک قرآن خدمت په ډېر شوق او ښه اهتمام سره وشي ! ځکه چې دا مياشت د همدې لپاره مقرره او معينه شوې ده.

﴿فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾

نو هر څوک چې ومومي له تاسې (ای مکلفينو) دا مياشت نو ضرور دې روژه ونيسي د هغې (مياشتې).

وَمَنْ كَانَ مَرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ

او هغه څوک چې وي ناجوړه يا په سفر کې بوزه وي، نو (پر ده باندې دي روژه نيول) په شمار (د خوړليو شويو ورځو) له ورځو نورو.

تفسير: له دې عام حکم څخه دا معلومېږي چې ښايي مريض او مسافر ته به هم د افطار او د قضا اجازه نه وي پاتې، او لکه چې د روژې توان لرونکی اوس له افطار څخه منع شوی دی، همداسې به مسافر او مريض هم له افطار څخه منع شوی وي، نو ځکه يې د مسافر او مريض ذکر بيا په صاف ډول وفرمايه، چې دوی ته په رمضان المبارک کې د افطار کولو، او په نورو ورځو کې د هغه د قضا راوړلو اجازه اوس هم د پخوا په شان باقي پاتې ده.

يُرِيدُ اللَّهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٨٥﴾

اراده لري الله په تاسې د آسانتيا، (چې مسافر او مريض يې مخير کړ)، او اراده نه لري په تاسې باندې د سختۍ، او لپاره د دې چې پوره کړئ (تاسې په قضا سره) شمار (دروژې د مياشتې) او چې په لويي سره ياد کړئ الله، په دې چې هدايت يې کړی دی تاسې ته، او لپاره د دې چې تاسې شکر وباسئ (د رخصت، آسانۍ او په نعمتونو باندې).

تفسير: مطلب دا دی: الله تعالی چې په اول کې د رمضان المبارک د روژې د نيولو حکم وفرمايه، او د معذرت له سببه يې مريض او مسافر ته د افطار کولو اجازه وفرمايله، او په نورو وختونو کې يې د هغو قضا شويو ورځو په شمار د هغو قضايي په مونږ او تاسې باندې واجبه وګرځوله، او پـه دې قضايي کـې يـې د يو ځاى يا سره جلا جلا (جدا جدا) نيولو قيد له مينځه وويست، نو په دې کې يې ځمونږ او ستاسې د سهولت او د آسانۍ لحاظ وکړ، چې په مونږ او تاسې باندې څه تکليف واقع نه شي، او دا مو هم تر نظر لاندې وي، چې تاسې د دې خير او خورا ښې طريقې په هدايت د پاک الله لويي او عظمت بيان کړئ، او د هغه د عزت، جبروت، او کبريا يادونه وکړئ !، او دا هم مطلوب دی چې پر دغو نعمتونو باندې شکر وباسئ !، او د شکر کوونکو په ډله کې ننوځئ !.

وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ﴿١٨٦﴾

او کله چې پوښتنه وکړي (اى محمده !) له تا څخه بندګان ځما (له لرېوالي او نږديوالي) ځما، نو بېشکه زه نژدې يم (دوی ته په علم او اجابت سره) قبلوم زه سوال د غوښتونکي په هغه وخت کې چې وبولي ما، نو ښايي چې دوی هم ومني حکم زما (اطاعت) او ټينګ دې اوسي په ايمان په ما باندې؛ ښايي چې دوی په سمه لاره محکم پاتې شي.

تفسير: په لومړنې آيت کې د الله تعالی د لويي او عظمت حکم بيان شوی وو، نو په دې نسبت ځينو خلقو پوښتنې وکړې چې: «ځمونـږ رب که لرې وي نو مونږ به په زور سره ورغږ کړو، او که نژدې وي نو ورو ورو به ورسره وغږېږو»، په دې سبب د آيت نازل شو، يعني الله تعالی نژدې دی، هره خبره اوري، که ورو ورو وغږېږئ !، او که په چيغو ورنارې کړئ !، هغه ټول اوري، په هغو ځايو کې چې په زور سره د تکبير ويلو حکم شوی وي؛ د هغو وجوه او اسباب نور په همغو ځايو پورې محدود او خاص دي، او سبب يې دا نه دی چې الله تعالی (معاذ الله) ورو خبره نه اوري.

أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَآئِكُمْ ۚ

حلال کړی شوی دی تاسې ته په شپه د روژې کې يو ځای والې (جماع) ښځو خپلو سره.

تفسير: د رمضان المبارک په شپو کې چې وروسته له خوبه خوړل او څښل او له خپلو ښځو سره نژدې کېدل حرام وو، په هغه کې يې هم آساني وفرمايله، اوس که د شپې په هره برخه کې مو هرې مشروعې او مرغوبې چارې ته زړه کيږي، هغه وکړئ !.

هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ

دوی لباس دي تاسې لره، او تاسې لباس يئ دوی لره.

تفسير: له لباس او کاليو (جامو) څخه خورا (ډېر) اتصال او ډېر اختلاط مقصود دی، يعنې همغسې چې ستاسې په وجود کالي نښتي او پيوست دي، همدارنګه ښځه او نارينه هم ډېر سره نژدې او د شودو او شکرې په شان يو له بل سره ګډون او امتزاج لري.

عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ

معلوم دي الله ته چې بېشکه تاسې يئ چې خيانت کوئ په ځانو خپلو.

تفسير: له خپل نفس سره له خيانت کولو څخه مطلب دا دی، چې له ويديدلو څخه وروسته تاسې خپلو ښځو ته نژدې کيدئ !، او د پاک الله د حکم د مخالفت له سببه ستاسې نفس د عقاب مستحق ګرځېده، نو پاک الله په خپل فضل او کرم سره تاسې معاف کړئ، او وروسته له دې تاسې ته اجازه وشوه، چې په ټوله شپه کې هر هغه حلال عمل چې مو زړه غواړي ويې کړئ !.

فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْـَٔانَ بَـٰشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا۟ مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ

پس رجوع يې په رحمت سره وکړه په تاسې باندې او عفوه يې وکړه له تاسې (د تېر خيانت) نو اوس جماع کوئ ! له خپلو ښځو سره (د روژې په شپو کې) او وغواړئ هغه شی چې ليکلې (مقرر کړي دي) الله ستاسې لپاره.

تفسير: يعنې هغه اولاد چې په لوح محفوظ کې ستاسې لپاره د الله تعالی له لوري مقدر شوي دي، ښايي چې د ښځو په مباشرت کې همغه مطلوب وي، او تش شهواني کارونه مو مقصود نه وي، په دې کې د عزل کراهت، او د لواطت ممانعت ته هم اشاره ده.

وَكُلُوا۟ وَاشْرَبُوا۟ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ

او خورئ ! او څښئ ! تاسې تر هغه پورې چې ښکاره شي تاسې ته تار سپين (جدا) له تاره توره (چې سپين تار) له سبا څخه (دی).

تفسير: يعنې همغسې چې په ټوله شپه کې د مجامعت اجازه ورکړی شوې ده، همداسې د رمضان المبارک په شپو کې هم تر سپيده داغه پورې د خوړلو او څښلو اجازه ورکړی شوې ده.

ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى الَّيْلِ

بيا پوره کړئ ! روژه (خپله) تر شپې پورې،

وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَٰكِفُونَ فِي الْمَسَٰجِدِ

او مه نژدې کیږئ ! ښځو ته (په جماع سره) حال دا چې تاسې معتکفان يئ په مسجدو کې.

تِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ فَلَا تَقْرَبُوهَا كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ ءَايَٰتِهِۦ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ۝١٨٧

دا احکام او حدود د الله دي، نو مه نژدې کيږئ دوی ته (په ماتولو سره)، همداسې (لکه چې دا يې درته بيان کړل) بيانوي الله آيتونه خپل لپاره د خلقو چې دوی ځان وساتي (د دې حدودو له مخالفته).

تفسير: هغه د حل او حرمت حکمونه چې د روژې او اعتکاف په نسبت تېر شول، د الله تعالی له خوا مقرر شوي دي، ښايي چې له دغو څخه هيڅ تجاوز ونه کړئ ! بلکه هغو ته هيڅ مه نژدې کيږئ ! يا يې مطلب دا دی چې پخپله رأيه يا د بل کوم حجت په اساس د يوه ويښته په اندازه هم ځنې مه لرې کيږئ !.

وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ

او مه خورئ مالونه خپل په خپل منځو کې په ناحقه سره.

تفسير: د حرام مال نه خوړل، او روژه ترې نيول، د ژوند په ټول عمر کې يو ضروري امر دی، او د هغه لپاره کومه ټاکلې زمانه او حد نشته، لکه غلا، خيانت، ټګي، رشوت، غصب، قمار، ناروا بيه، سود او نور چې په دغه ډول د مال ګټل بالکل حرام او نا جايز دي.

وَتُدْلُوا۟ بِهَآ إِلَى ٱلْحُكَّامِ لِتَأْكُلُوا۟ فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَٰلِ ٱلنَّاسِ بِٱلْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ۝١٨٨

او مه رسوئ ! دا مال تر حاکمانو پورې لپاره د دې چې وخورئ (تاسې په دې رسولو سره) يو څه له مالو د خلقو ځنې په ظلم (نا حقه سره) او تاسې پوهيږئ (چې دا ظلم دی).

تفسير: «مه يې رسوئ تر حاکمانو پورې»: يعنې د کوم سړي د مال خبر ظالمو حاکمانو ته مه رسوئ، يا خپل مال د رشوت په ډول حاکمانو ته مه ورکوئ ! چې حاکم د خپل ځان مل کړئ، او د بل چا مال د هغه په زور سره وخورئ، همدا راز د دروغو په شاهدي، يا د دروغو په دعوی، د بل چا مال مه آخلئ ! او حال دا چې تاسې په خپله ناحقي هم پوهيږئ.

يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْأَهِلَّةِ

پوښتنه کوي خلق له تا څخه (ای محمده !) له حاله د نويو مياشتو.

تفسير: خلقو د سپوږمی د دې زياتوالي او کموالي په نسبت ځمونږ له رسول اکرم صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلم څخه پوښتنې وکړې، نو دا آيت نازل شو.

قُلْ هِىَ مَوَٰقِيتُ لِلنَّاسِ وَٱلْحَجِّ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې دا مياشتې ټاکلي (مقرر) شوي وختونه دي لپاره د خلقو او دحج.

تفسير: يعني اى محمده ! دوى ته ووايه چې د سپوږمۍ په ختلو او بدلون سره ډېرې چارې او معاملې تعلق لري، او د سپوږمۍ په وسيله ديني ورځې، د عباداتو او معاملاتو وختونه، د قرض، اجارې، حمل، رضاعت، روژې، زكات، عدت، عقود، شروط، مزدوري، او د نورو شيانو نېټې څرګندېږي، او هره يوه نېټه او تاريخ له هغې څخه پر ډېر ښه شان سره ښكارېږي، په تېره بيا د «حج» د تخصيص بله وجه همدا ده چې: «ذو القعدة الحرام، ذو الحجة الحرام، محرم الحرام، او رجب المرجب» دا څلور مياشتې حرامې مياشتې بللې كيدې، چې په دغو مياشتو كې جنګ او وژل حرام وو، كه په دغو مياشتو كې به عربو ته كوم جنګ پيښېده، نو هغوى به تاريخونه سره وړاندې وروسته كول، او په يوه پلمه (تدبير) او بهانه سره به يې په هماغو حرامو مياشتو كې جنګونه كول، مثلا كه په «ذو الحجة» يا «محرم» كې به له جنګ سره مخامخ كېدل، نو هغه به يې په «صفر» سره تعبير كاوه، او كله چې به «صفر» كې كوم كار د دوى په مخ كې راته، نو هغه به يې په «ذو الحجة» يا «محرم» ياداوه، نو د دوى د دې خيال د ابطال له امله يې دلته د «حج» تصريح وفرمايله، هغه ورځې چې حق تعالى جل وعلى شأنه د «حج» لپاره ټاكلي دي، په هغو كې وړاندې وروسته كول، هيڅكله جايز نه دي، اوس له دې نه وروسته د «حج» او د هغه متعلقات او احكام تر ډېر ځاى پورې ذكر كيږي.

وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَنْ تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ ظُهُورِهَا وَلَٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقَىٰ ۗ وَأْتُوا الْبُيُوتَ مِنْ أَبْوَابِهَا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿١٨٩﴾

او نه ده نيكي (دا كار) چې راځئ (تاسې) كورو ته د شا له لوري د هغو، او ليكن (خاوند) د نېكۍ هغه څوک دی چې ويرېږي (له الله په ترک د مخالفت كې)، او راځئ ! كورو ته له طرفه د دروازو د هغوى، او وويرېږئ له الله څخه د دې لپاره چې تاسې خلاص شئ (د الله له عذاب) او په خپل مراد ورسېږئ.

تفسير: د جاهليت په زمانه كې داسې دود (رواج) او دستور وو، چې كله به دوى د «حج» احرام وتاړه، او له خپلو كورونو څنې به وتل، او بيا به اتفاقا هغوى ته كوم هسې ضرورت پيښېده چې بېرته به د خپل كورو ورتګ ته اړ كېدل، نو د دروازو له لارې به نه ورتلل، او په بام باندې به ورختل، او له هغې لارې به خپلو كورو ته ورننوتل، يا به د شا له خوا پكې ننوتل، يا به يې د شا له لوري سورى واهه، او پكې به ننوتل، او دا كار به يې نيكي او ښېګڼه ګڼله، نو څكه پاک الله دا كار غلط وښود.

وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ

او جنګ كوئ (اى مؤمنانو !) په لاره د الله كې ! له هغو كسانو سره چې جنګ كوي له تاسې سره.

وَلَا تَعْتَدُوا ۚ

او مه كوئ تيرى، زياتى (پر هيچا باندې اى مؤمنانو !).

تفسير: يعني تېرى مه كوئ، ددې معنى دا ده چې په جنګ كې دې وړو كې، ښځې، او سپينږيري قصدا ونه وژل شي ! او دننه په بيت الحرام كې دې په جګړو باندې لومړى پيل (ابتدا) ونه كړل شي.

إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿١٩٠﴾ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ

بېشكه چې الله تعالى محبت نه كوي تېري كوونكو سره له حده. او ووژنئ ! دوى په هر ځاى كې چې مومئ دوى، او وباسئ ! دوى له هغه ځايه چې ايستلي دي دوى تاسې لره.

تفسير: هر چېرې چې يې مومئ ويې باسئ، يعنې په «حرم» کې وي يا پرته له حرمه، له هغه ځايه چې تاسې يې ايستلي يئ، يعنې له مکې معظمې څخه يې وباسئ.

وَالْفِتْنَةُ أَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ

او فتنه (شرک او له دين څخې اړول) ډېر سخت دي له وژلو څخه.

تفسير: يعني له دين څخې ګرځېدل، يا له دين څخې د بل چا ګرځول، له هغو وژلو څخه چې په أشهر الحرم کې واقع شي؛ ډېره لويه ګناه ده، مطلب يې دا دی چې د مکې معظمې په حرم کې د کفارو شرک او کفر او نورو ته د کفر او شرک په لوري لاربښوونه کول ډېر قبيح کار دی.

وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ فَإِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ كَذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾

او جنګ مه کوئ ! له دوی سره د مسجد الحرام په خوا کې تر هغه پورې چې وجنګيږي دوی له تاسې سره په دغه (حرم) کې، پس که جنګ وکړي دوی له تاسې سره نو وژنئ ! دوی، همداسې (لکه تېرې شوې جزا) جزا ده د کافرانو.

تفسير: يعني مکه معظمه خامخا د امن ځای دی، ولې که هغوی پر تاسې باندې بريد وکړي، يا په ظلم باندې لاس پورې کړي، او په ايمان راوړلو کې له تاسې سره دښمني وکړي، چې دا خبره له وژلو څخې هم سخته ده، نو بيا هغوی لره امان نه پاتې کيږي، او هر چېرې چې يې وموموئ ويې وژنئ ! آخر ته چې مکه معظمه فتح شوه، رسول اکرم صلی الله عليه وسلم همداسې امر وفرمايه: «هغه څوک چې د مسلمانانو په مخ کې توره په لاس ودرېږي، ويې وژنئ ! او نورو کسانو ته امن ورکړئ».

فَإِنِ انْتَهَوْا فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾

پس که منع راوړي (له شرکه، نو الله به يې وبخښي) نو بېشکه الله ډېر بخښونکی، پوره رحم کوونکی دی.

تفسير: يعني سره له دومره خبرو که اوس هم دوی ايمان راوړي، او له کفر او شرک څخې توبه وباسي، نو د هغوی توبه منله کيږي.

وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ فَإِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ إِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹۳﴾

او جنګ کوئ تاسې ! له دوی سره تر هغه پورې چې پاتې نشي فتنه (شرک او فساد)، او شي دين (حکم) خاص الله لره، پس که چېرې وګرځېدل (دوی له شرکه نو تاسې تجاوز مه کوئ پر دوی باندې) نو نشته هيڅ تېری مګر (خو شته جزا د ظلم) پر ظالمانو باندې.

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْا أَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾

مياشته حرامه په بدل د مياشتې حرامې کې ده، او تعظيمونه (د دې شيانو) سره برابر دي، پس هر چا چې تېری وکړ پر تاسې باندې نو تاسې هم تېری کوئ ! په هغوی باندې په شان د هغه

چې تېرې يې کړې وو پر تاسې باندې، او وويرېږئ له الله څخه ! او پوه شئ ! چې بېشکه الله له پرهېزګارانو سره دی (په علم او نصرت سره).

تفسير: دا د حرمت مياشت يعني «ذو القعدة الحرام» چې د عمرې لپاره پکې درومئ، د هغه حرمت مياشتې په ځای ده، چې دپروسږ کال تېر شوي کال په «ذو القعدة الحرام» کې تاسې د کفارو له خوا د عمرې او د بيت الله شريف له زيارت څخه ممنوع شوي وئ، او پرې يې نه ښودئ چې مکې معظمې ته لاړ شئ.

وَاَنۡفِقُوۡا فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ وَلَا تُلۡقُوۡا بِاَيۡدِيۡكُمۡ اِلَى التَّهۡلُكَةِ ۛ

او صرفوئ (مالونه خپل) په لاره د الله کې ! او مه غورځوئ ځانونه خپل په هلاکت کې (چې جهاد ترک کړئ ! او خپل مالونه په غزا کې ونه لګوئ !).

وَاَحۡسِنُوۡا ۛ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الۡمُحۡسِنِيۡنَ ۝١٩٥

او نيکي کوئ ! (له هر چا سره مخصوصا له غازيانو سره) بېشکه چې الله دوستي کوي له نېکو کارانو سره.

وَاَتِمُّوا الۡحَجَّ وَالۡعُمۡرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنۡ اُحۡصِرۡتُمۡ فَمَا اسۡتَيۡسَرَ مِنَ الۡهَدۡىِ ۚ وَلَا تَحۡلِقُوۡا رُءُوۡسَكُمۡ حَتّٰى يَبۡلُغَ الۡهَدۡىُ مَحِلَّهٗ ؕ

او پوره ادا کړئ حج ! او عمره خاص الله لره، بيا که چېرې منع کړی شوئ (له تمامولو د حج او عمرې) نو (واجب دی پر تاسې) هغه څه چې آسان دي له هديې څخه (چې مذبوحه ده) او مه خريئ ! (ای محصرانو !) سرونه خپل تر هغه پورې چې ورسيږي هديه (چې مذبوحه ده) ځای د حلالې خپلې ته.

تفسير: مطلب دا دی: کله چې څوک «حج» يا «عمره» شروع کړي يعني احرام وتړي؛ نو پر هغه باندې دا خبره لازمه ده، چې پوره يې کړي، او روا نه ده چې هغه په نيمايي کې پرېږدي، او له احرام څخه ځان وباسي، مګر که کوم دښمن يا مرض ورپېښ شي، او د هغه له سببه «حج» او «عمره» پای ته ونشي رسولی، نو پر ده باندې دم اوړي، چې له خپل توان سره سم حيوان حلال کړي، چې ادنی يې يو پسه دی، او دا حيوان به د بل چا په وسيله مکې شريفې ته ليږي، او دا دې هم ورته ووايي چې: تر دغې ورځې پورې دا مذبوحه د حرم ځمکې ته ورسوه ! او هلته يې ذبحه کړه ! او هر کله چې ډاډه شي، چې اوس د ده مذبوحه ذبحه شوې ده، نو هلته دا خپل ويښتان لنډ يا وخريي، او پخوا له هغه دې هيڅکله ځان نه حلالوي، داسې وينې ته د «حصار وينه» وايي، چې د «حج» يا د «عمرې» د نه تمامولو له سببه پر «حاجي» يا «معتمر» باندې اوړي.

فَمَنۡ كَانَ مِنۡكُمۡ مَّرِيۡضًا اَوۡ بِهٖۤ اَذًى مِّنۡ رَّاۡسِهٖ فَفِدۡيَةٌ مِّنۡ صِيَامٍ اَوۡ صَدَقَةٍ اَوۡ نُسُكٍ ۚ

نو هر څوک چې وي له تاسې ځنې ناجوړه، يا وي په ده باندې تکليف له (طرفه) د سر د ده، نو لازمه ده په ده باندې فديه له روژې څخه، يا له خيراته، يا له حلالولو (د پسه).

تفسير: يعني که د «احرام» په حالت کې څوک رنځور شي، يا د هغه په سر کې درد يا زخم وي، نو هغه لره د ضرورت له امله د احرام په حالت کې هم سر خرييل، يا د ويښتانو لنډول روا دي، مګر د هغه «فديه» دې ورکوي، چې هغه د

درې ورځو روژه نيول، يا شپږو تنو مسکينانو ته طعام ورکول دي، يا د يوه پسه (ګډه) حلالول دي، دا وينه د «جنايت وينه» بولي، چې د «احرام» په حالت کې د ناچارۍ له کبله د «احرام» د مخالفو امورو په کولو باندې لازميږي.

﴿فَإِذَآ أَمِنتُمْ فَمَن تَمَتَّعَ بِٱلْعُمْرَةِ إِلَى ٱلْحَجِّ فَمَا ٱسْتَيْسَرَ مِنَ ٱلْهَدْيِ﴾

نو هر کله چې په امن شئ پس هر چا چې نفع واخيسته په عمرې سره (چې يو ځای يې کړه) له حج سره نو (واجب) دي پر ده باندې هغه چې آسان وي له هديې څخه (چې مذبوحه ده).

**تفسير:** يعنې هغه «محرِم» چې د دښمن اومرض له خوا مطمئن وي، اعم له دې نه چې هغه ته له سره کومه انديښنه ورپېښه نه شي، يا خو دښمن يا رنځورۍ څه عارضه او حادثه ورپېښه شوي وي، خو په خير سره زائله او له مينځه ورکه شوي وي، او د هغه له امله د هغه په احرام او «حج» او «عمره» کې څه خلل ورپېښ شوی نه وي، هغه لره ښايي چې فکر وکړي که «حج» او «عمره» يې دواړه سره يو ځای ادا کړي وي، يعنې «قِران» يا «تمتُّع» يې کړی وي، او «اِفراد» يې نه وي کړی، نو په ده باندې يو پسه يا د غويي يا د اوښ اومه برخه قرباني اوړي، چې دې وينې ته د «قران» او «تمتع» وينه وايي.

﴿فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَٰثَةِ أَيَّامٍ فِى ٱلْحَجِّ وَسَبْعَةٍ إِذَا رَجَعْتُمْ ۗ تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ﴾

هر چا چې ونه مونده هديه (چې مذبوحه ده) نو (واجب) دی په ده باندې روژې د درې ورځو په (ورځو د) حج کې، او اوه ورځې (نورې) کله چه وګرځئ (تاسې) دا لس ورځې دي پوره.

**تفسير:** يعنې هغه څوک چې «قران» او «تمتع» يې وکړه، او مذبوحه ورته ميسره نشوه، نو هغه لره ښايي چې درې ورځې د «حج» په ورځو کې روژه ونيسي، چې د «عرفې» يعنې د «ذي الحجې» په نهمه ورځ کې پای (آخر) ته ورسيږي، او اوه ورځې د «حج» له فراغت څخه وروسته روژه ونيسي، چې دا ټولې لس ورځې شوې.

﴿ذَٰلِكَ لِمَن لَّمْ يَكُنْ أَهْلُهُۥ حَاضِرِى ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ﴾

دا (حکم د تمتع) هغه چا لره دی، چې نه وي عيال د ده اوسېدونکی په (حوالي «احاطه» د) مسجد حرام کې.

**تفسير:** يعنې قران او تمتع يا وجوب د هديې يا د لسو ورځو روژو حکم په نادار؛ هغه چا لپاره دی چې په مسجد الحرام کې يعنې په مکه معظمه کې يا هغې ته نږدې نه اوسيږي، بلکه د «حل» يعنې له «ميقات» څخه د باندې هستوګنه ولري.

﴿وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿١٩٦﴾ ٱلْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَٰتٌ﴾

او وويريږئ له الله څخه او پوه شئ ! چې بېشکه الله ډېر سخت عذاب ورکوونکی دی. (وخت د) حج (څو) مياشتې معلومې دي.

**تفسير:** د شوال المکرم له اول څخه نيولې د لوی اختر يعنې د «ذي الحجة الحرام» د لسمې شپې تر سهاره پورې،ددې مياشتو نومونه (أشهر الحج) دي، ځکه چې د حج احرام د همدې مودې په منځ کې وي، که پخوا له دې څوک د حج «احرام» وتړي، نو هغه ناجائز يا مکروه وي، يعنې د حج لپاره څو مياشتې مقررې دي، او ټولو ته ښکاره دي، هغه تغيير او تبديل چې د عربو مشرکينو به د خپل ضرورت له مخې په دې مياشتو کې کاوه، او د هغو په نسبت په بل آيت کې داسې فرمايلي شوي دي: ﴿إِنَّمَا ٱلنَّسِىٓءُ زِيَادَةٌ فِى ٱلْكُفْرِ﴾ هغه بيخي بې اصله او باطل دی.

فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ۗ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللَّهُ ۗ

نو هر چا چې فرض کړ (په خپل ځان) په دې میاشتو کې حج؛ نو نه دې کوي جماع (او نه دواعي د هغې) او نه ګناهونه او نه جګړې په (ورځو) د حج کې، او هر څه چې کوئ (تاسې) له نیک کار څخه، نو پوهیږي په هغه باندې الله.

تفسیر: «حج» یې لازم کړ یعنې «احرام» یې وتاړه په داسې ډول چې په زړه یې نیت وکړ، او په خوله یې «تلبیه» وویله.

وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَىٰ ۚ وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ ﴿١٩٧﴾

او توښه واخلئ (له ځانو سره) نو بېشکه بهتره توښه ځان ساتل دي له سواله، او ووېرېږئ ! له ما ځنې ای خاوندانو د (صافو) عقلو !.

تفسیر: یو داسې غلط دود او دستور په کفر کې دا هم وو، چې بې د لارې دخرچه د تش لاس «حج» ته تلل یې ثواب ګڼل، او هغه ته به یې «توکل» وایه، او هلته به تلل، له هر چا ځنې به یې سوال او غوښتنې کولې، نو الله تعالی هغو کسانو ته چې قدرت لري؛ امر ورکوي چې هغوی دی د لارې خرچه له ځان سره اخلي، او بیا دې «حج» ته ځي، او بې له زاد او راحلې دې لاړ نه شي، چې هم پخپله دی سرګردانیږي، او نورو ته هم سرګرداني پېښوي.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ ۚ

نشته په تاسې باندې هیڅ ګناه په دې کې چې غواړئ روزي له فضل د رب خپل.

تفسیر: که د «حج» په سفر کې سوداګیري هم وکړی څه ګناه نه لري، بلکه مباح ده، خلق له دې خبرې څخه په شبهه کې وو، چې ښایي له تجارت کولو څخه به په «حج» کې څه نقصان پېښیږي، نو اوس داسې هدایت صادر شو: هغه څوک چې اصلي مقصود یې «حج» وي، او د هغه په ضمن کې سوداګیري هم وکړي، نو د هغه په ثواب کې به څه نقصان نه راځي.

فَإِذَا أَفَضْتُمْ مِنْ عَرَفَاتٍ فَاذْكُرُوا اللَّهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۖ

نو هر کله چې راکوز شئ له عرفات څخه نو یادوئ الله په مشعر الحرام (مزدلفې) کې.

تفسیر: په ټوله مزدلفه کې هر چیری ودریدل جائز او روا دي، پرته دوادي محصر څخه، چې هلته دې نه ودریږي.

وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَاكُمْ وَإِنْ كُنْتُمْ مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الضَّالِّينَ ﴿١٩٨﴾

او یادوئ دې (یعنې الله) لکه چې لاره یې در ښودلې ده تاسې ته، او بېشکه چې وئ تاسې پخوا له هدایته خامخا له ګمراهانو ځنې.

تفسیر: یعنې کفارو خو به هم د پاک الله ذکر کاوه مګر په شرک سره، نو ښایي چې هسې ذکر دې ونه کړی شي، بلکه سره له توحیده یې همغسې ذکر و کړئ، چې تاسو ته یې هدایت درکړی دی.

ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿١٩٩﴾

بیا راکوزېږئ ! (ای قریشو د طواف لپاره) له هغه ځایه (عرفات څخه) چې راکوزیږي (نور) خلق (مزدلفې ته)، او مغفرت وغواړئ له الله څخه (د خپلو ګناهونو)، بېشکه چې الله ښه مغفرت کوونکی (د ګناهونو) پوره رحم کوونکی دی.

تفسير: د كفر په زمانه كې يوه غلطي دا هم وه، چې مكيان (مكې والا) به تر عرفاته پورې نه تلل، ځكه چې عرفات له حرم څخه د باندې دی، بلكه د حرم په حد كې به چې مزدلفه ده، درېدل، او د مكې شريفې له قريشو څخه پرته نور ټول به تر عرفات پورې تلل، او بيا به له عرفات څخه د طواف لپاره مكې شريفې ته راتلل، نو ځكه يې وفرمايل: «له هغه ځايه چې ټول خلق دطواف لپاره راځي، تاسې هم همغه ځای ته ورشئ، او له هغه ځايه (له عرفات) د طواف لپاره بېرته راشئ، او په خپلو پخوانيو ګناهونو باندې نادم اوسئ !».

فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءَكُمْ أَوْ أَشَدَّ ذِكْرًا ۗ

نو هر كله چې ادا كړل تاسې افعال د حج خپل، نو يادوئ الله لكه چې يادول تاسې پلرونو خپلو لره (په جاهليت كې په فخر سره) بلكه يادوئ الله په ډېر زيات يادولو سره.

تفسير: يعنې د «ذي الحجة الحرام» په لسمه كې چې د «حج» د افعالو يعنې د جمرو ويشتلو، قرباني كولو، سر خرييلو، يا د ويښتانو لنډولو، د كعبې شريفې د طواف، او د صفا او مروی له سعيې فارغ شوئ، نو د منی د قيام په وخت كې د الله تعالی ذكر وكړئ !، لكه چې د كفر په زمانه كې تاسې د خپلو پلرونو او نيكونو ذكر كاوه، بلكه له هغه څخه دې هم زيات ذكر وكړی شي !.

دوی له قديمې زمانې راهيسې داسې عادت درلود، چې د «حج» له فراغت څخه وروسته به درې ورځې په منی كې ډېره كېدل، او لوی بازار به يې جوړاوه، او د خپلو پلرونو او نيكونو ستاينه او يادونه به يې كوله، او د دوی لوينې او فضائل به يې بيانول، نو ځكه پاك الله له هسې ويناوو څخه هغوی منع كړل، او ويې فرمايل چې: په دې ورځو كې د الله تعالی ذكر ډېر وكړئ، او د هغه الله جلت عظمته د لويې او عظمت يادونه وكړئ !.

فَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿٢٠٠﴾
وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ
النَّارِ ﴿٢٠١﴾ أُولَٰئِكَ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّمَّا كَسَبُوا ۚ وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٢٠٢﴾

نو ځينې له خلقو څخه هغه څوك دي چې وايي ای ربه ځمونږ ! راكړه مونږ ته په دنيا (لږ ژوند) كې (ځمونږ برخه، مال او جاه) او نشته ده لره په آخرت كې هيڅ برخه، او ځينې له دوی څخه هغه څوك دي چې وايي: ای ربه ځمونږ ! راكړه مونږ ته ! په دنيا (لږ ژوند) كې نيكي (نعمت) او په آخرت كې نيكي (جنت)، او وساته مونږ له عذابه د اور (د دوزخ)، دغه كسان شته دوی لره لويه برخه له سببه د هغو (ښو اعمالو) چې كړي دي دوی (هغه)، او الله ژر اخيستونكی د حساب دی (چې ډېر ژر د ټولو مخلوقاتو حساب خلاصوي).

تفسير: غوښتونكي په دوه ډوله دي: يو خو هغه دي چې د هغوی مطلوب يوازې دنيا ده، او د هغوی دعا هم دغه ده: «هر هغه دولت او عزت چې مونږ ته راكول كيږي، په همدې دنيا كې دې راكړ شي»، نو داسې خلق د آخرت له نعمتونو څخه بې برخې دي، بل هغه دي چې د هغوی مقصود آخرت دی، چې د دنيا ښېګڼې (فائدو) او نيكی يعنې د عبادت توفيق او نور، او د آخرت ښېګڼې (فائدو) او نيكی يعنې ثواب، رحمت او جنت دواړه غواړي، نو داسې كسانو ته په آخرت كې د هغوی د حج او دعا او حسناتو پوره برخه وررسيږي.

وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ؕ

او يادوئ ! الله (د تکبيراتو په ويلو سره) په څو ورځو شمېرل شويو (د تشريق) کې.

تفسير: له ﴿اَيَّامًا مَّعْدُوْدٰتٍ﴾ څخه د «ذي الحجة الحرام» يوولسمه، دولسمه، او ديارلسمه ورځ مراد ده، چې په دې ورځو کې خلق له «حج» څه فارغيږي، او مامور دي چې په «منی» کې واوسيږي، په دې ورځو کې د جمرو ويشتل، او له هر لمانځه څخه وروسته د تکبيراتو ويل اجراء کړئ ! او په نورو وختونو کې هم دلته تکبير او تهليل په ډېر محبت سره ووايئ !، او د پاك الله په ذکر کې کثرت او مداومت وکړئ !.

فَمَنْ تَعَجَّلَ فِيْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ؕ

نو هر چا چې بيړه (تلوار) وکړه (په تلو کې له منی مکې ته) په دوو ورځو کې (چې «۱۱» «۱۲» د ذي الحجې دي) نو نشته هيڅ ګناه پر دغه تلوار کوونکي، او هر چا چې تأخير وکړ (او درې ورځې په منی کې پاتې شو) نو نشته هيڅ ګناه په ده باندې، دا بېګناهي هغه چا لره ده، چې پرهېز يې کړی وي (له مناهيو څخه).

تفسير: ګناه خو دا ده چې له شرعي ممنوعاتو څخه پرهېز ونه کړئ، او هغه څوك چې له الله تعالی څخه ووېريږي، او په تېره بيا د «حج» په وخت کې تقوی او پرهېزګاري هم وکړي، نو بيا په دې خبره هيڅ نه ګناهګاريږي ؛ چې په «منی» کې دوه ورځې هستوګنه وکړي، يا درې ورځې پکې واوسيږي، ځکه چې الله تعالی دا دواړه جايز فرمايلي دي، ولې افضل او بهتر خو په «منی» کې د درې ورځو قيام دی.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾

او (تل) ووېرېږئ ! له الله څخه، او پوه شئ چې بېشکه تاسې خاص الله ته ورټولېږئ (په قيامت کې د مکافاتو «جزا او سزا» لپاره).

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِيْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾
وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿۲۰۵﴾
وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ؕ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾

او ځيني له خلقو څخه هغه څوك دي چې په تعجب کې آچوي تا خبره د ده په (کارو د دې) ژوندون لړ کې، او شاهد کوي دې الله په هغه شي چې په زړه د ده کې دي، حال دا چې دی ډېر سخت دی په جګړه او عداوت کې، او کله چې ببېرته وګرځي (له تانه ای محمده !) نو ګرځندی ګرځي په ځمکه (د مدينې) کې لپاره د دې چې فساد وکړي په ځمکه کې، او هلاکوي کښت (فصل) او ساکنبان (ذي روح) (په سوځولو او وژلو سره) حال دا چې الله نه خوښوي فساد (او معصيت).

او کله چې وويل شي ده ته: چې ووېرېږه له الله ! نيسي دی غرور (عار او ننګ په کولو د) ګناه، بس کافي دی ده لره (عذاب د اور) د دوزخ او هرومرو (خامخا) بد بستر دی (دا اور د دوزخ).

تفسير: دا حال د منافق دی، چې په ښکاره سره خوشامندي او تعلق کوي، او الله تعالی ځانته شاهد گرځوي، او وايي چې: زه «رښتين يم، او په زړه کې مې د اسلام محبت دی»، خو د جګړې، داړې، غلا، لوټ او تالان ځنې هم خپل مخ نه اړوي، او که له هسې چارو يې څوک منع کړي؛ نه منع کيږي، بلکه ضد او مخالفت کوي، او په خپلو بدو چارو کې ترقي کوي.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰۷﴾

او ځنې له خلقو څخه هغه څوک دي چې خرڅوي نفس خپل لپاره د طلب د رضا د الله (چې له خپله ځانه او ماله تېريږي)، او الله ډېر مهربان دی پر بندګانو باندې (چې د ده په توفيق له ځانه او ماله تېريږي).

تفسير: وايي چې صهيب رومي (رضي الله عنه) غوښتل چې د هجرت په اراده د رسول الله صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلم حضور ته حاضر شي، په لار کې د مشرکينو په لاس کنبيوت (راګير شو)، صهيب رضي الله تعالی عنه هغوی ته وويل: «زه خپل کور او ټول مال تاسو ته په دې شرط درکوم، چې ما خوشې کړئ ! چې مدينې ته لاړ شم، او له هجرت څخه مې مخه مه نيسئ !»، په دې باندې هغوی راضي شول، او صهيب رضي الله تعالی عنه يې پرېښود چې د رسول صلی الله عليه وسلم په حضور مشرف شي، نو دا آيت د مخلصينو په تعريف کې نازل شوی دی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى السِّلْمِ كَآفَّةً ۪

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو) ننوځئ ! په اسلام کې (دهغه له ټولو شرايطو سره) ټول.

تفسير: يعنې په ظاهر او باطن، او په عقيده او عمل کې يوازې د اسلام د احکامو متابعت وکړئ !، او نه چې په خپل سر او عقل، يا د بل چا په خوله کوم حکم ومنئ !، يا کوم کار وکړئ !، نو له دې ځنې «بدعت» قلعه او قمعه او له بېخه ويستل مقصود دي، ځکه چې «بدعت» په حقيقت کې همدا شی دی، چې د بل چا کومه عقيده يا کوم عمل چې ښه او مستحسن وګڼلی (وګڼلی) شي، هغه له خپل لوري په دين کې داخل کړی شي، مثلا لمونځ او روژه چې أفضل د عبادتونو دي، که بې له شرعي حکمه يې څوک له خپله ځان مقرر کړي بدعت دی، لکه د اختر په ورځ په عيدګاه کې په نفلونو باندې امر ورکول، يا د اخترونو په ورځو کې د روژې نيول.

وَلَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۰۸﴾

او مه کوئ پيروي د قدمونو د شيطان ! بېشکه دا (شيطان) تاسې لره دښمن دی ښکاره.

تفسير: يعنې په خپلې وسوسې سره بې اصله شيان ستاسو په زړونو کې اچوي، او په دين کې بدعتونه شاملوي، او دين مو خرابوي، او تاسې هم هغه غوره کوئ.

فَاِنْ زَلَلْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْكُمُ الْبَيِّنٰتُ فَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۰۹﴾

بيا که وښوييدئ تاسې وروسته له هغه چې راغلي دي تاسې ته ښکاره دلائل؛ نو وپوهيږئ چې بېشکه الله ډېر غالب دی (په انفاذ د احکامو) لوی حکمت والا دی ( چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن يَأۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةُ وَقُضِيَ ٱلۡأَمۡرُۚ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ ﴿٢١٠﴾

انتظار نه کوي دوی مګر دېته چې راشي دوی ته الله په سیورو کې له وريځو څخه او (راشي دوی ته) پرښتې (د عذاب) او خلاص شي کار (د اهلاک د دوی) او (خاص) الله ته بېرته ګرځول کيږي ټول کارونه (په قيامت کې د مجازاتو لپاره).

تفسير: یعنې هغه کسان چې د حق تعالی له دې صافو او ښکاره وو احکامو څخه مخالف کار کوي، او له خپل کاره تګه نه اوړي، او سمې صافې لارې ته نه راځي، نو دوی په پاک قرآن او رسول معظم صلی الله علیه وسلم باندې يقين او باور نه لري، اوس ګواکې دوی دې خبرې ته ستر ګې نيولي دي، چې خپله الله تعالی او د هغه پرښتې پر دوی باندې راشي، او د جزا او سزا کومه واقعه چې په «قيامت» کې راتلونکې ده، هغه په همدا نن ورځ پای (آخر) ته ورسيږي، او فيصله شي، خو بالآخره د ټولو امورو حساب او کتاب، ثواب او عقاب، او د ورتګ ځای همغه رب الأرباب دی، او د ټولو مرجع او مآب همغه عزيز الوهاب دی، او ټول احکام د همغه الملک القادر له حضوره صادريږي، او په دې کې هيڅ يوه د تردد خبره نشته.

سَلۡ بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ كَمۡ ءَاتَيۡنَٰهُم مِّنۡ ءَايَةِۭ بَيِّنَةٖۗ

پوښتنه وکړه (ای محمده !) له بني اسرائيلو څخه: چې څومره ورکړي دي مونږ دوی ته له دلائلو څرګندو څخه؟.

تفسير: له دې نه يې پخوا فرمايلي وو چې د حق تعالی د صاف حکم له ښکاره کېدلو څخه وروسته، له هغه څخه مخالفت، د عذاب موجب دی، اوس د هغه په تاييد کې فرمايي چې: په خپله له بني اسرئيلو اولاده د يعقوب څخه پوښتنه وکړي، چې مونږ دوی ته څومره ښکاره آيات او صريح او واضح احکام رالېږلي دي؟ کله چې دوی له هغو څخه منحرف او چپ شول، نو څمونږ په عذابو اخته شول، او داسې نه دی چې مونږ پخوا له نافرمانی څخه هغوی په عذاب اخته کړي وو.

وَمَن يُبَدِّلۡ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡهُ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ﴿٢١١﴾

او هر څوک چې بدل کړي نعمت د الله (په نا شکری سره) وروسته له هغه چې راغلی وو دا (نعمت) ده ته، نو بېشکه الله؛ سخت دی عذاب (د ده).

تفسير: یعنې دا قاعده خو خامخا محققه ده، هر هغه څوک چې د پاک الله له احکامو او هداياتو څخه مخالفت کوي، يا يې آيات بدلوي، او د هغه د احساناتو او انعاماتو کفران کوي، نو بيا د هغه عذاب ډېر سخت دی، په داسې ډول چې په دنيا کې دې ووژل شي، يا دې کور او مال لوټ کړ شي، يا دې جزيه پرې کېښوده شي، چې تل خوار او ذليل واوسيږي، په عقبی کې همېشه تل تر تله په دوزخ کې پاتې کيږي.

**فائدة:** له نعمت رسېدلو څخه دا مطلب دی چې په هغه باندې يې علم حاصل شي، يا بې له تکلفه يې په لاس ورشي.

زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلۡحَيَوٰةُ ٱلدُّنۡيَا وَيَسۡخَرُونَ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْۘ

ښايسته کړی شوی دی هغو کسانو لره چې کافران شوي دي دغه ژوند لږ خسيس، او مسخرې کوي دوی پر هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (په سبب د فقر د دوی او غنی خپلې).

**تفسير:** هر كله چې به د مشركانو مشران پر «بلال رضي الله تعالى عنه» يا «عمار رضي الله تعالى» عنه يا «صهيب رضي الله تعالى عنه»، يا د مهاجرينو پر نورو فقراوو رضوان الله تعالى عليهم أجمعين باندې تېرېدل، يا به يې دوى ليدل، نو پر دوى باندې به يې تمسخر كاوه، او خندل به يې، او ويل به يې چې: «دغه ناپوهانو ته وګورئ ! چې د آخرت په خيال د دنيا تكاليف، او مصائب پر ځانو باندې اخلي، او محمد صلى الله عليه وسلم ته وګورئ ! چې ددغو فقيرانو په ملګرتوب غواړي چې د عربو پر مشرانو برئ ومومي، نو ځكه دوى تل د غلبې په فكر كې لګيا، او د دنيا د اصلاح په چورت كې مشغولتيا لري».

وَالَّذِينَ اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۗ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢١٢﴾

او هغه كسان چې يې ساتلي دي (ځانونه له شركه) د پاسه د دوى (يعني كفارو) به وي په ورځې د قيامت كې، او الله روزي وركوي هغه چا لره چې اراده وكړي بې له حسابه (ډېره پراخه).

**تفسير:** الله تعالى د هغوى په ځواب كې ارشاد فرمايي: دوى نه پوهيږي چې همدا فقيران او غريبان به د قيامت په ورځ له دوى ځني اعلى او لوړ وي، او الله تعالى په دنيا او عقبى كې هغه چاته چې اراده وفرمايي بېشماره رزق او روزي وركوي.

كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللَّهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ وَأَنزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ ۚ وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۖ فَهَدَى اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ ۗ وَاللَّهُ يَهْدِي مَن يَشَاءُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٢١٣﴾

وو ټول خلك (په ابتدا كې) ټولى يو په يوه حق دين(بيا ځني كافران او ځني مسلمانان پاتې شول) پس ولېږل الله انبيا زيري وركوونكي (مؤمنانو ته په نعيم سره) او وېروونكي (كافرانو ته په جحيم سره)، او راويې لېږه له دوى سره كتاب(بيانوونكى ددين) په حقه سره، لپاره ددې چې حكم وكړي (الله يا نبي يا كتاب) په مينځ د خلكو كې په هغه كار كې چې اختلاف كړى دى دوى په هغه كې، او اختلاف نه دى كړى په هغه (حق يا كتاب يا اسلام) كې مګر هغو كسانو چې وركړى شوى وو دوى لره كتاب، (اختلاف يې چې كړى وو) وروسته له هغه چې راغلي وو دوى ته دليلونه ښكاره په سبب د كينې په مينځ د دوى كې، پس سمه صافه لاره وښووله الله هغو كسانو ته چې ايمان يې راوړى دى هغه شي ته چې جګړه كړې وه دوى په هغه كې (چې عبارت دى له حقه) په اذن (حكم) خپل سره، او الله هدايت كوي هغه چا ته چې اراده (يې د هدايت) وكړي طرف د لارې سمې ته.

**تفسير:** د آدم عليه السلام له وخته راهيسې همدا يو حق دين پاتې دى، وروسته له هغه څخه تر يوې مودې پورې هغه دين پاتې وو، او بيا خلقو په هغه كې اختلاف وكړ، نو پاك الله د هغو د اختلافاتو د لرې كولو لپاره خپل انبياء ولېږل.

**فائدة:** له دې آيت ځني دوه خبرې معلوميږي:

(١) دا چې الله تعالى هغه رسولان او متعدد كتابونه چې رالېږلي يې دي، ددې لپاره نه دي چې د هرې فرقې لپاره بېله لاره وښيي، بلكه ټولو لره الله تعالى اصلا هماغه يوه لاره مقرره كړېده، كله چې دوى له هغې سمې لارې ځني وښوئېدل، نو الله تعالى دوى ته بيا رسول صلى الله عليه وسلم او كتاب ورولېږل، چې

سم د هغو له احکامو سره تګک وکړي، کله چې وروسته له هغه هغوی بیا ګمراهان شول، بیا بل نبي علیه السلام او بل کتاب الله دوی ته ورواستول شو، چې دوی په یوه لاره باندې قائم پاتې شي، ددې خبرې مثال داسې دی چې روغتیا یوه ده، او ناروغي ګانې بېشمارې دي، کله چې یوه ناروغي پیدا شوه نو سم د هغه له علاجه سره يې یوه دوا او پرهېز وفرمایه، څه وخت چې بل کوم مرض پیدا شو نو له هغه سره يې بله دوا او پرهېز وټاکه (مقرر کړ)، اوس يې په آخر کې هسې یوه طریقه او قاعده وفرمایله، چې په هغې سره له ټولو ناروغیو نجات ممکن دی، او د ټولو په بدل کفایت کوي، او هغه د اسلام پاکه طریقه ده، چې د هغې لپاره آخر الزمان رسول صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم او دا عظیم الشان فرقان لېږلی شوی دی.

(۲) دا خبره معلومیږي چې د الله تعالی همدا سنت جاري دي، چې بدانو د رسولانو په خلاف په هر وخت او هره زمانه کې کار کاوه، او د هر آسماني کتاب په نسبت به يې اختلاف درلود (لرلو)، او دحق او حقانیت په نسبت به يې تل جنګک او جګړې کولې، او په همدې کې به بوخت (مشغول) او لګیا وو، نو اوس نه ښایي چې د ایمان اهل د کافرانو له بد سلوکۍ او فساد څخه زړه تنګي او خفه شي.

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ ﴿٢١٤﴾

آیا ګمان کوئ تاسي (ای مؤمنانو !) چې ننه به وځئ تاسو جنت ته، حال دا چې راغلي به نه وي په تاسي باندې په مثل (د سختیو) د هغو کسانو چې تېر شوي دي پخوا له تاسې نه، چې رسیدلې وه دوی ته سختي (لکه فقر) او رنځ، او ګرځول شوي وو دوی (په سختیو سره) تر هغه پورې چې ویل به (هم) رسول او (هم) هغو کسانو چې ایمان يې راوړی وو سره له ده چې: کله به وي نصرت د الله؟ خبردار شئ ! واورئ ! چې بېشکه نصرت د الله نږدې دی (مؤمنانو ته).

يَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنْفِقُونَ

پوښتنه کوي له تا نه (ای محمده ! مؤمنان) چې څه شی خرڅ کړي دوی (په لاره د الله کې؟).

تفسیر: په پخوانیو آیتو کې په کلي ډول دا مضمون په ډېر تاکید سره بیان شو چې کفر او نفاق پرېږدئ !، او په اسلام کې په پوره ډول سره ننوځئ، او د پاک الله جل جلاله د حکم په مقابل کې بل د هیڅا خبرې ته غوږ مه ږدئ !، او د الله تعالی په خوښۍ کې خپل ځان او مال جار (قربان) کړئ !، او هر راز شدت او تکلیف پر ځان باندې واخلئ !، له دې ځای نه وروسته ددې کلیې په نسبت د جزئیاتو تفصیل بیانیږي، چې د ځان او دمال او نورو معاملاتو په نسبت لکه نکاح، طلاق، او نورو پورې تعلق لري، چې ددې کلیې تحقیق او تاکید په ښه ډول سره په زړه کې کښیني.

قُلْ مَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ ﴿٢١٥﴾

ووایه (ای محمده !) هر شی (لږ یا ډېر) چې صرفوئ (خرچ کوئ) تاسې له مالو څخه؛ نو (يې صرف کړئ) لپاره د مور او پلار او (لپاره د) خپلوانو او (لپاره د) یتیمانو او مسکینانو (چې څه شی

نه لري) او (لپاره) مسافرانو، او هر هغه څه چې (يې) کوئ تاسې له نېک کاره؛ نو بېشکه چې الله په هغه باندې (لکه په نورو اشياوو) ښه عالم دی.

**تفسير:** ځينې اصحاب چې مالداران وو، له رسول اکرم صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم ځنې يې پوښتنه وکړه چې: له مال ځنې مونږ څه صرف کړو؟ او په څه شي باندې يې ولګوو؟ نو ځکه داسې حکم وشو، چې لږ يا ډېر هر څه چې د الله تعالی لپاره صرفوئ (خرچ کوئ)، هغه د مور او پلار او أقاربو او يتيمانو، او محتاجانو او مسافرانو لپاره دي، يعنې که د ثواب د حصول لپاره يې ښندل او صرفول غواړئ، نو هغومره مو چې زړه غواړي صرف يې کړئ !، د هغه لپاره څه تعيين او تحديد نشته، هو ! دا ضروري ده چې هغه په همغو مواقعو باندې صرف کړ شي، چې مونږ يې درښيو !.

كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ

فرض کړی شوی دی پر تاسې باندې جنګ کول (له کفارو سره).

**تفسير:** يعنې د دين له دښمنانو سره جنګېدل فرض کړی شوي دي.

**فائده:** تر هغه وخت پورې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په مکې شريفې کې اوسېده، په جنګ سره مجاز نه وو، کله چې يې مدينې منورې ته هجرت وفرمايه، نو دوی ته د مقاتلې اجازه وشوه، مګر يواځې د هغو کفارو په مقابل کې چې له مسلمانانو سره جنګيږي، وروسته تر دې له ټولو کفارو سره د مقاتلې اجازه وشوه، او «جهاد» فرض شو، او که د دين دښمنان پر مسلمانانو بريد او تعرض وکړي، نو پر مسلمانانو باندې «جهاد» فرض عين ګرځي، که نه فرض کفايي دی، ولې په دې شرط سره چې د «جهاد» هغه ټول شرطونه وموندلی شي، چې په فقهيه وو کتابونو کې راغلي دي، هو ! هغه خلق چې له هغو سره مسلمانان مصالحه وکړي، يا له دوی سره معاهده ولري، يا کفار د مسلمانانو تر حفاظت او امن لاندې راشي؛ نو له هسې کفارو سره جنګېدل، يا د دوی په مقابله کې د دوی له مخالفينو سره مرستې (مدد) کول؛ مسلمانانو ته هيڅکله روا نه دي.

وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ

حال دا چې دغه (جنګ) بد ښکاري تاسې ته.

**تفسير:** د بد ښکاره کېدلو مطلب دا دی چې: پر نفس باندې سخت او دروند معلوميږي، دا نه چې د رد او د انکار وړ په نظر راځي، او له حکمت او مصلحت څخه مخالف ورښکاري، او د تنفر او خفګان موجب وي، نو په دومره خبره باندې پر هيچا باندې هيڅ الزام نشته، ځکه چې انسانان بالطبع له ژوندانه سره ډېر عشق او مينه لري، او بل هيڅ شی له ژوندانه سره نه برابروي، نو ځکه جنګ او مقاتله انسانانو ته فطرتا دروند او سخت کار ښکاري.

وَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَعَسَىٰ أَن تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ۗ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢١٦﴾

او ښايي چې بد ګڼئ تاسې يو شی حال دا چې هغه ډېر بهتر وي تاسې لره، او ښايي چې ښه وګڼئ تاسې يو شی، حال دا چې هغه به ډېر بد وي، تاسې ته، او الله عالم دی (په خير ستاسې) او تاسې نه پوهيږئ (په خير خپل).

**تفسير:** يعنې دا خبره ضروري نه ده، چې هر هغه شی چې تاسې يې خپل ځان ته نافع يا مضر وګڼئ، هغه په رښتيا سره هم ستاسې په حق کې همغسې وي، بلکه کيدای شي، چې تاسې يو شی د خپل ځان لپاره بد وګڼئ، او هغه په واقع کې

مفید وي، یا کوم شی تاسې ښه وګڼئ، او هغه په حقیقت کې مضر وي، دا چې تاسې وایئ: «په جهاد کې د ځان، او مال دټولو شیانو نقصان دی، او د (جهاد) په پرېښودلو او ترک کې د ټولو حفاظت دی»؛ خوشې یو چټي او فضول خیال دی، تاسې نه پوهېږئ چې په جهاد کې د دنیا او آخرت لوی لوی منافع شته، او د جهاد په ترک کې ډېر ډېر نقصانات دي، ستاسې په ګټه او تاوان، نفعه او نقصان باندې یواځې الله (تعالی جلت کلمتُه) ډېر ښه پوهیږي، او تاسې نه پرې پوهېږئ، نو ځکه هر هغه حکم چې الله تعالی یې پر تاسې کوي، هغه خامخا حق دی، او تاسو یې د زړه له کومي ومنئ، او په هسې چټي (بېکاره) خیالاتو پسې مه ګرځئ !.

يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ

پوښتنه کوي خلق له تا نه (ای محمده !) له میاشتې حرامې څخه له جنګ کولو په دې کې (چې روا دی که ناروا؟).

تفسیر: فخر عالم صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم د مسلمانانو یو ټولی د کفارو د مقابلې لپاره ولېږه، دوی کفار ووژل، او مالونه یې په غنیمت سره راوړل، مسلمانان ښه پوهېدل چې هغه د «جهاد» وخت د جمادی الأخری وروستنی عشره، او د رجب المرجب اوله شپه ده، کافرانو ددې په نسبت په طعنې ویلو باندې پیل (شروع) وکړ: چې محمد صلی الله علیه وسلم حرامه میاشته حلاله کړه، او خپلو امتیانو ته یې حکم ورکړی دی چې په اشهر الحرم کې دې هم له خلکو سره جګړې وکړي، او د دوی مالونه دې په ولجه (غنیمت) او لوټ یوسي، په دې ملحوظ مسلمانان د رسول أکرم صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم په حضور کې حاضر او پوښتنه یې وکړه چې: «اوس څه حکم دی؟ له مونږ ځنې خو اشتباها دا کار صادر شوی دی؟» په دې تقریب دا آیت نازل شو.

قُلْ قِتَالٌ فِيهِ كَبِيرٌ

ووایه (ای محمده ! دغو سائلینو ته) چې جنګ کول په دې (أشهر الحرم) کې (عمدا) لویه ګناه ده.

تفسیر: یعنې په حرامه میاشته کې جنګېدل، خو ببشکه د ګناه خبره ده، ولې لویو أصحابو رضي الله عنهم سم له خپلو پوهنو سره په جمادی الثاني کې «جهاد» کړی وو، او په حرام میاشته کې یې چې رجب المرجب دی؛ نه وو کړی، نو د دې له امله (وجهې) د عفوې مستحق دي، او په دوی باندې هیڅ یو الزام نه اوړي، نو په هغوی داسې الزام لګول بې انصافي ده.

وَصَدٌّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَكُفْرٌۢ بِهِۦ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَإِخْرَاجُ أَهْلِهِۦ مِنْهُ أَكْبَرُ عِندَ اللَّهِ

او منع کول له لارې (دین) د الله څخه، او کافر کېدل په الله، او (منع کول له) مسجد حرام نه، او ایستل د اهل د مسجد حرام له ده څخه (ګناه) ډېره لویه ده، په نزد د الله (له قتاله په أشهر الحرم کې).

تفسیر: یعنې د اسلام څخه د مسلمانانو ممانعت، او پخپله د اسلامي دیانت څخه بغاوت، او د بیت الله شریف د زیارت څخه د خلکو مخ نیول، او د مکې معظمې اوسیدونکې د باندې شړل؛ دا خبرې د أشهر الحرم له مقاتلې څخه هم لویې ګناوې دي، او حال دا چې کفار پرله پسې هسې کارونه کوي، لنډه یې دا چې «په حرامه میاشته کې بې سببه او نا حقه جنګېدل خو ببشکه لویه ګناه ده، مګر هغه خلق چې په حرم شریف کې کفر خپروي (خوروي)، او لوی لوی فسادونه په کې کوي، او په اشهر الحرم کې هم د مسلمانانو د (آزارولو) څخه لاس نه اخلي، نو له هسې کفارو سره د جنګېدلو

ممانعت نشته، برسېره په دې کله چې پخپله مشرکان په داسې بدو أمورو کې لګیا دي، نو په داسې یوه وړوکي ګناه باندې، چې هغه هم د لا علمی له امله واقع شوې ده، پر مسلمانانو باندې دداسې ظالمانو او متجاوزو (حد نه تېرېدونکو) کافرانو له لوري طعنې وهل؛ د شرم او تعجب خبره ده».

وَالْفِتْنَةُ أَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ

او فتنه (له دین څخه د خلقو ایستل) ډېره لویه (ګناه) ده له جنګ څخه.

**تفسیر:** یعنې په دین کې فتنه او فساد اچول چې خلق له دین څخه وګرځي، له هغه قتل نه چې له مسلمانانو څخه سهوا په حرامه میاشت کې واقع شوی دی؛ په څو درجو بد دی.

مشرکانو داسې عادت درلود، چې د اسلامي دین په خبرو کې یې راز راز شبهې او خدشې پیدا کولې، څو نور خلک په شبهو کې ولوېږي، او د اسلام دین ونه منې، لکه چې په همدې پېښه کې چې دځینو مسلمانانو له لوري سهوا په أشهر الحرم کې واقع شوې وه، مشرکانو ډېرې خبرې وکړې، او له دې ویناوو څخه د هغوی مقصد دا وو چې نور خلک د اسلام له قبلولو څخه متنفر کړي، نو یې لنډه داسې شوه: «په هغه قتل باندې چې د مسلمانانو له لاسه صادر شو؛ مشرکان پیغورونه ورکوي، چې خلق د حق دین له لارې واړوئ، حال دا چې دا د دوی فتنه، او له حق دین څخه لغځول (ښویول) له قتل څخه په څو درجو مذموم او شنیع دی».

وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا

او همېشه به وي دوی (یعنې کافران) چې جنګ به کوي دوی له تاسې سره تر هغه پورې چې بېرته وګرځوي دوی تاسې له دینه ستاسې که یې لاس ورسیږي (او موقع ومومي).

**تفسیر:** یعنې تر څو چې تاسې په حق دین باندې قائم اوسېږئ، دا مشرکان په هیڅ یوه حالت او په هیڅ یوه موقع کې، ستاسې له مقاتلې او مخالفت څخه لاس نه اخلي، اګر که د مکې معظمې په حرم شریف او أشهر الحرم کې هم وي، لکه چې د حدیبیې په عمره کې یې همداسې وکړل، چې کافرانو نه د مکې شریفې حرمت وساته، او نه یې د حرامو میاشتې څه لحاظ وکړ، او بې سببه یې یوازې د بغض او عناد له امله قتل او جدال ته ملاوې وتړلې، او مسلمانان یې مکې شریفې ته له ورتګ څخه ستانه کړل، او پرې یې نه ښودل چې عمره ادا کړي، بیا نو دداسې معاندینو طعنې او بد ویلو ته نه ښایي چې څه اهمیت ورکړ شي، او نه ښایي چې له هغوی سره په أشهر الحرم کې له مقاتلې کولو څخه ډډه (څنګ) وشي.

وَمَن يَرْتَدِدْ مِنكُمْ عَن دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولَٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢١٧﴾

او هر څوک چې ګرځي له تاسې نه له دینه خپل، پس مړ شي حال دا چې دی کافر وي، نو دغه کسان ضایع شوي دي (تېر) عملونه د دوی په دنیا او آخرت کې، او دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي هم دوی به په دې (اور) کې همېشه وي.

**تفسیر:** یعنې له اسلامي دین څخه غاړه غړول او په کفر باندې تر آخره پورې ټینګ پاتې کېدل داسې یوه سخته بلا ده، چې د ګرد عمر نیکي له منځه وړي، په دنیا کې د هغوی مال او ځان محفوظ نه پاتې کیږي، نکاح یې فسخ کیږي، له میراث څخه بې برخې پاتې کیږي.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢١٨﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې هجرت یې کړی دی، او جهاد یې کړی دی په لاره (دین) د پاک الله کې، دغه کسان امید لري دوی د رحمت (مهرباني) د الله او الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیاتو) پوره رحم کوونکی دی.

تفسیر: له لومړني آیت څخه پورتنیو اصحابانو ته دا خبره معلومه شوه چې پر مونږ باندې په دې باره کې هیڅ مؤاخذه نشته، مګر په دې تردد کې پاتې وو چې: آیا مونږ ته د هغه «جهاد» چې مونږ کړی دی ثواب رارسیږي که نه؟ نو دا آیت نازل شو، هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او هجرت یې کړی دی، او د الله تعالی لپاره بې د کوم شخصي غرض څخه یې د هغه له دښمنانو سره «جهاد» کړی دی، نو دوی بېشکه د الله تعالی د رحمت امیدوار، او د هغه مستحق دي، او پاک الله د خپلو بندګانو خطاوې بخښي، او پر دوی باندې رحم کوونکی دی، نو الله تعالی به هسې مطیعان او حکم منونکي بندګان نه محرومويي.

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ۖ

پوښتنه کوي دوی له تا نه (ای محمده !) (له حکمه د څښلو) د شرابو، او (له کولو د) قمار نه.

تفسیر: د شرابو او قمارو (جواري) په نسبت څو آیتونه نازل شوي دي، او په هر یوه کې د هغو خرابي راښکاره شوې ده، آخر یې د (المائدة) په (۹۰) آیت (۱۲) رکوع کې په ښکاره ډول سره ممانعت وکړ شو، نو ټول هغه شیان چې نشه راوړونکي دي له یوه مخه حرام دي، او هغه شرطونه چې په کوم شي باندې تړل کیږي، او ګټل او بایلل په کې وي؛ حرام دي، او یوه طرفه شرط تړل حرام نه دي.

قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا ۗ

ووایه (ای محمده ! دوی ته) په دې دواړو کې ګناه لویه ده، او ګټې دي لپاره د خلقو، او ګناه د دې دواړو ډېره لویه ده له ګټې دی دواړو نه.

تفسیر: د شرابو له څښلو څخه هغه عقل چې انسان له ټولو بدو امورو څخه ځان پرې ژغوري (ساتي)، زائل کیږي، او سړی د «مأمور به» پرېښولو او د ممنوع عنه کولو ته باعث کیږي، چې جنګ، قتل، او نورې خرابۍ ترې پیدا کیږي، او راز راز هسې روحاني او جسماني ناروغۍ ورځنې څیږي، چې ډېر ځلې د هلاکت موجب ګرځي، او په قمار کې د حرام مال خوړل، غلا کول، او د مال او عیال تضییع او یو له بل سره دښمني مینځ ته راځي، او راز راز ظاهري او باطني مفاسد ترې پیدا کیږي، هو ! په دوی کې څه سرسري ګټې هم شته، مثلاً د شرابو له څښلو څخه مؤقتا خوند، لذت، خوښي او سرور ورحاصلیږي، او له قمار وهلو ځنې بې له مشقته ویړیا مال او شته په لاس ورځي.

وَيَسْأَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ الْعَفْوَ ۗ

او پوښتنه کوي دوی (ای محمده !) له تا ځنې چې څومره خرڅ کړي دوی (په لاره د الله کې؟)
ووایه (ای محمده ! دوی ته: صرف کړئ هغه چې وي) زیات (ستاسې له خرڅ نه).

**تفسير:** ځمونږ له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه خلقو داسې پوښتنې کړې وې چې: «د الله تعالی لپاره څومره مال صرف کړ شي؟» حکـم وشو چې: «هغه مال د پاک الله په لاره کې صرف کړئ ! چې ستاسې له ضروري مصارفو څخه زيات وي»، ځکه څنګه چې د آخرت فکر يو ضروري او حتمي کار دی، ددنيا فکر هم يو ضروري کار دی.

هو ! که تاسې خپل ټول مال په يوه لاره کې صرفوئ، نو خپل ضروريات به څرنګه پوره کړی شئ؟ او هغه حقوق چې په تاسې باندې لازم دي، هغه به څنګه ادا شي؟ او په دې تقدير: الله تعالی خبر دی چې د دنيوي او اخروي په څه راز راز خرابيو کې به اخته کېږئ.

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱۹﴾ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ؕ

همداسې (مخکني بيان په شان) بيانوي الله تاسې تـه احکام لپاره د دې چې تاسې فکر وکړئ د (الله تعالی په دلائلو او احکامو کې) په (کارونو د) دنيا او آخرت کې.

**تفسير:** يعنې فاني دنيا خو د حوائجو ځای دی، او باقي عقبی خو د ثوابونو ځای دی، نو ځکه په ډېر فکر او اندېښنه سره ښايي چې په هر امر کې سم د هغه له حال سره مال صرف کړ شي ! او اخروي او دنيوي مصالح دې دواړه په نظر کې ونيول شي.

وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ؕ

او پوښتنه کوي دوی له تانه (ای محمده ! له معاملاتو د) يتيمانو؛

**تفسير:** ځينو خلقو به د يتيمانو په مالو کې احتياط نه کاوه نو د هغه په نسبت داسې حکم صادر شو ﴿وَلَا تَقْرَبُوْا مَالَ الْيَتِيْمِ اِلَّا بِالَّتِىْ هِىَ اَحْسَنُ﴾ او ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا﴾ الآيه – دلته هغه کسان چې د يتيمانو پالنه يې کوله وو ډېر بدل او د هغوی ډوډۍ او نور لګښت (خرڅه) يې له خپله ځانه بېخي جلا کړه، ځکه چې د يتيمانو مالونه د شرکت په حالت کې خوړل کېدل، دلته داسې يوه سختي پېښه شوه چې کوم شی به يتيم لپاره تيارېده د هغه پاتې برخه به غوځارېده، او په دا رنګه احتياط کې د يتيمانو نقصان کېده، نو ځمونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور کې دا خبره عرض شوه؛ نو ددې په نسبت دا آيت نازل شو:

قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ ؕ وَاِنْ تُخَالِطُوْهُمْ فَاِخْوَانُكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ ؕ

ووايه (ای محمده ! دوی ته چې سمول (برابرول) او ساتل او) اصلاح د مال د دوی بهتر دي (له بېزارۍ نه)، او که يو ځای کړئ (خرڅ د) دوی (له ځانه سره نو) دوی ورونه ستاسې دي، او الله ته معلوم دی ضايع کوونکی د (مال له) اصلاح کوونکي نه.

**تفسير:** يعنې مقصود خو يواځې هم دا خبره ده؛ چې د يتيم د مال اصلاح، اداره، او ساتنه دې په ښه ډول سره وکړی شي !، نو هر وخت چې په جداوالي کې د يتيم ګټه وي، هغه دې اختيار او غوره کړی شي ! او چېرې چې په شرکت کې د يتيم خير او ښېګڼه (فائده) وليده شي، نو د هغه خرڅ هم د خپل ځان له خرڅ سره ګډ کړی شي !، په دې کې هيڅ يوه مضائقه او خبره نشته چې کله تاسې د هغوی له خوړو څخه وخورئ !، او کله په دوی باندې له خپلو خوړو څني وخورئ !، ځکه چې هغه يتيمان خو ستاسې ديني يا نسبي ورونه او خويندې دي، او د ورونو ګډون په خوړلو کې څه بده خبره نه ده، هو ! دا يوه ضروري خبره ده چې ديتيمانو د اصلاح او ګټو رعايت دې په پوره ډول سره وکړی شي !، او پاک الله ښه عالم دی چې په دې شرکت کې د چا مقصود خيانت او د يتيم د مال فساد دی؟ او د چا منظور د يتيمانو اصلاح او دوی ته نفع رسول دي؟

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَاَعْنَتَكُمْ

او كه اراده كړي واى الله (دمشقت ستاسې) نو خامخا به يې مشقت راوستلى وو په تاسې باندې.

تفسير: مشقت راوستل يعنې په خوړلو او څښلو كې به يې د يتيمانو مشاركت د اصلاح په توګه (طور) هم مباح نه ګرځاوه، يا دا كه بې علمه او بې قصده به په كې كوم كموالى يا ډېر والى پېښېده؛ په هغه كې به يې هم مؤاخذه كوله.

اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۰﴾

بېشكه چې الله ښه غالب (د احكامو په انفاذ كې قوي) ښه تدبير والا دى (چې هر كار په حكمت او مصلحت سره كوي).

وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ۚ وَلَاَمَةٌ مُّؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكَةٍ وَّلَوْ اَعْجَبَتْكُمْ ۚ وَلَا تُنْكِحُوا الْمُشْرِكِيْنَ حَتّٰى يُؤْمِنُوْا ۚ وَلَعَبْدٌ مُّؤْمِنٌ خَيْرٌ مِّنْ مُّشْرِكٍ وَّلَوْ اَعْجَبَكُمْ ۗ

او په نكاح مه آخلئ ! مشركې ښځې تر هغه پورې چې ايمان راوړي دوى، او خامخا وينځه مؤمنه بهتره ده له مشركې اصيلې ښځې، اګر كه ښه درښكاره شي تاسې ته هغه (كافره)، او په نكاح مه وركوئ (مسلمانانې ښځې) كافرانو ته تر هغه پورې چې ايمان راوړي دوى، او خامخا مريي مؤمن بهتر دى له كافر سړي نه، اګر كه ښه درښكاره شي تاسې ته (هغه كافر).

تفسير: لومړى د مسلمان نارينه له كافرې ښځې سره او د كافر له مسلمې سره د نكاح اجازه وه، په دې آيت سره هغه امر منسوخ شو، كه نارينه يا ښځه مشركه وي، نو د هغې نكاح له مسلمان سره روا جائز نه ده، يا كه وروسته له نكاح څخه يو له زوجينو څخه مشرك شي؛ نو پخوانى نكاح ماتيږي.

او مشرك دېته وايې چې: يا خو د الله جل جلاله سره د هغه په ذات يا په صفاتو كې بل څوك مشابه او يو شان وګڼي، او يا هم د الله تعالى سره د بندګۍ او عبادت په يو ډول او نوع كې بل څوك شريكوال او برخمن وګڼي، لكه په سجده، سرټيټولو، په غياب كې چيغه وهلو، نذر او منښته منلو، او هر نوع ما فوق الأسباب حاجت غوښتلو او را بلنه كې.

فائدة: د اهل كتابو ښځو سره د مسلمان نارينه نكاح روا ده، څكه دا د نورو آيتونو څخه ثابته ده.

اُولٰٓئِكَ يَدْعُوْنَ اِلَى النَّارِ ۖۚ وَاللّٰهُ يَدْعُوْٓا اِلَى الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ ۚ وَيُبَيِّنُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۲۱﴾

دغه (كافر) كسان بولي (خلق په بد عمل سره) په لوري د اور (د دوزخ)، او الله بولي (خلق) په لوري د جنت او مغفرت په اذن (حكم او ارادې) خپلې سره، او بيانوي احكام خپل خلقو ته لپاره د دې چې دوى نصيحت ومني (پند واخلي).

تفسير: يعنې له مشركينو نارينه وو او مشركانو ښځو سره اختلاط او دهغوى أقوالو ته غوږ نيول، او دهغوى أفعالو ته كتل له هغوى سره نفرت كموي، او دهغوى سره دمينې او محبت سبب ګرځي، او ددې كار انجام دوزخ دې، نو څكه له مشركانو سره نكاح بيخي حرامه او له هغي څخه اجتناب لازم كار دي.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ ۖ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِي الْمَحِيضِ ۖ وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىٰ يَطْهُرْنَ ۖ

او پوښتنه کوي دوی له تا نه (ای محمده !) له (احکامو د) حيض څخه، ووايه (ای محمده ! دوی ته) دا يوه پليتي ده، نو په څنګ (جدا) شئ (له جماع د) ښځو (خپلو) په وخت د حيض کې، او مه نژدې کيږئ ! (په جماع سره) دوی ته تر هغه پورې چې (ښې) پاکې شي.

تفسير: «حيض» هغو وينو ته وايي چې له ښځو څنې د هغو له عادت سره سم بهيږي، په دې حالت کې مجامعت، لمونځ، روژه، طواف، د قرآن تلاوت، مسجد ته ننوتل ټول ناروا دي، خو هغه وينه چې بې له عادت څخه ليدل کيږي، هغه ناروغي ده، نو په دې ناروغی کې چې د فقهاوو په اصطلاح «استحاضه» وايي؛ دغه پاس ټول ممنوعه شيان راو دی، او د هغې وينې حال هسې دی لکه چې له کوم زخم يا پوزې يا رګ وهلو څنې وينه بهيږي.

يهودانو او مجوسيانو د «حيض» په وخت کې له ښځو سره ډوډۍ خوړل، او په يوه کور کې هستوګنه کول، او نور شيان هم ناجايز ګڼل، مګر نصرانيانو حتي د حائضاتو له مجامعت څنې هم ځانونه نه ژغورل (ساتل)، مسلمانانو په دې مورد کې له رسول اکرم صلی الله عليه وآله وصحبه وسلم څخه پوښتنه وکړه، نو دا آيت نازل شو، پيغمبر صلی الله عليه وسلم په ښکاره ډول سره فرمايلي دي چې: د «حيض» په حالت کې مجامعت حرام دی، ليکن له دوی سره خوړل، څښل، هستوګنه، ناسته ولاړه ټول روا دي، او د يهودانو افراط او د نصرانيانو تفريط دواړه مردود شول.

فَإِذَا تَطَهَّرْنَ فَأْتُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَمَرَكُمُ اللَّهُ ۚ

نو هر کله چې ښې پاکې شوې دوی؛ نو راځئ دوی ته (په جماع سره) له هغه ځايه چې حکم کړی دی تاسې ته الله.

تفسير: له هغه ځای څخه چې د مجامعت اجازه په کې ورکړی شوې ده، يعنې د مخ له خوا چې له هغه ځايه کوچنيان (بچي) زيږي، او بل ځای ته راتګ (يعنې لواطت) حرام دی.

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ وَيُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِينَ ﴿۲۲۲﴾

بېشکه چې الله خوښوي بيا بيا توبه ايستونکي (له ګناهونو څخه) او خوښوي ځان ساتونکي (له پليتيو څخه).

تفسير: يعنې هغه کسان چې توبه کوي له هغې ګناه څنې چې له دوی څنې اتفاقا صادره شوي وي؛ مثلا د «حيض» په حالت کې د «وطي» مرتکب شوي وي، او هغه کسان چې له ناپاکی يعنې له ګناهونو او د «حيض» په حالت کې: له «وطي» او د نجسي موقعي له «وطي» څنې ځان ژغوري (بچ کوي).

نِسَآؤُكُمْ حَرْثٌ لَّكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّىٰ شِئْتُمْ ۖ

ښځې ستاسې ځای د کرلو (د نسل) ستاسې دي، نو راځئ ځای د کرلو خپلو ته (چې قُبُل دی) په هرې طريقې سره چې خوښه وشي ستاسې.

تفسير: يهودانو د شا له لوري په روا ځای کې له ښځو سره مجامعت کول ممنوع ګڼل، او ويل به يې: «که څوک داسې مجامعت وکړي؛ هغه کوچنی (بچی) چې له هسې مجامعت څنې پيدا کيږي احول (کوږ سترګی) (چپي) به وي»، کله چې ځمونږ پاک رسول الله صلی الله عليه وآله وصحبه وسلم څنې په دې مورد کې پوښتنه وشوه، نو دا آيت نازل شو، «يعنې ستاسې ښځې تاسو لره لکه ستاسو کښت (فصل) داسې دي، چې په دوی کې نطفه د تخم په شان او اولاد

د پيداوار غونډې دي، يعنې له هغه ځنې مقصد د نسل پاتې کېدل، او اولاد زېږېدل دي، نو تاسې واک (اختيار) لرئ چې: له خپلو ښځو سره د مخ له خوا، ناسته، يا ملاسته، يا ولاړه، يا په اړخ، يا د شا له لوري، د مخ په خوا په هر ډول مو چې زړه غواړي مجامعت وکړئ !، مګر دا خبره ضروري ده، چې تخم شيندل دې په همغه خاصه موقع کې وي، چې له هغه څخه مولود موجودېږي، يعنې مجامعت دې هرومرو (خامخا) په فرج کې وشي !، او له لواطت ځنې دی خامخا ځان وژغوري ! (وساتي)، ځکه چې هغه ځای د مرداری او نجاست دی، د يهودانو دا خيال غلط دی چې؛ له هسې مجامعت ځنې احول «چپی» مولود موجودېږي».

وَقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُمْ

او په مخ کې ولېږئ تاسې ! د پاره د ځانو خپلو (نيک عمل) !

تفسير: يعنې صالحه اعمال تل د ځان لپاره کوئ ! يا دا چې له «وطي» ځنې مو ښايي صالح اولاد مطلوب وي، او يوائې نفساني حظ مو مقصود نه وي.

وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّكُم مُّلَاقُوهُ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٢٣﴾ وَلَا تَجْعَلُوا اللَّهَ عُرْضَةً لِّأَيْمَانِكُمْ أَن تَبَرُّوا وَتَتَّقُوا وَتُصْلِحُوا بَيْنَ النَّاسِ ۗ

او ووېرېږئ ! له الله څخه او وپوهېږئ ! چې بېشکه تاسې ملاقات کوونکي يئ له الله سره، او زيری ورکړه (ای محمده !) مؤمنانو ته(دجنت). او مه ګرځوئ ! (نوم د) الله نښانه لپاره د قسمونو خپلو پر دې چې (نه) به نيکي کوئ، او (نه) به پرهېزګاري کوئ او (نه) به روغه کوئ په مينځ د خلقو کې.

تفسير: يعنې د کوم ښه کار په نه کولو باندې په الله تعالی قسم يادوئ، مثلا له خپلې مور او پلار سره به خبرې نه کوم، يا فقيرانو ته به خير خيرات نه ورکوم، يا له هيچا سره به مصالحت يعنې روغه نه کوم، يعنې په هسې قسمو کې چې د پاک الله نوم د خرابو کارو وسيله ګرځوئ، نو وروسته له دې هسې قسمونه مه خورئ ! که څوک بيا داسې قسمونه يادوي، نو د هغه ماتول، او «کفاره» يې ورکول پرې واجبېږي.

وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٤﴾

او الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (پر ټولو اعمالو) دی.

تفسير: يعنې هر څوک چې قسم يادوي الله تعالی يې اوري، که څوک د پاک الله د جلال او عظمت له وېرې له قسم خوړلو څخه ځان ساتي، نو (سميع عليم الله) د هغه په نيت ښه عالم او ښه خبردار دی، ستاسې هيڅ يوه پټه او ښکاره خبره له الله تعالی څخه پټه نه ده، نو څکه د زړه په نيت او د ژبې په خبرو او نورو کارونو کې ډېر زيات احتياط په کار دی.

لَّا يُؤَاخِذُكُمُ اللَّهُ بِاللَّغْوِ فِي أَيْمَانِكُمْ

نه نيسي الله تاسو لره په لغوه او بيهوده قسمونو ستاسو باندې.

تفسير: لغو او چټي (بېکاره) قسم هغه دی: چې له خولې ځنې سم له عادته يا عرفه سره چټي پټي ووځي، او د زړه له کومې او په عمدې او ارادې ډول سره نه وي، له هسې قسم يادولو ځنې نه په چا باندې «کفاره» اوړي، او نه پرې ګناهګارېږي، هو ! که څوک په قصد او ارادې سره د قسم الفاظ لکه «والله» «تالله» ووايي، او له دې قسم ځنې يې يوائې تاکيد مقصود وي، او قسم خوړل يې په زړه نه وي، نو پرې «کفاره» اوړي، د «کفارې» بيان وروسته راځي.

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ

او لېکن نیسي (الله) تاسې په هغه (قسم) چې قصد کړی وي (د هغه) زړونو ستاسې (پس له حنثه).

**تفسیر:** یعنې هغه قسم چې عمدي او په قصد سره وي، او په هغه کې زړه او ژبه سره بیخي یو شی وي؛ نو دهسې قسم په ماتولو باندې هرومرو (خامخا) «کفاره» اوړي.

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾

او الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیئاتو) دی ښه تحمل کوونکی دی (په تاخیر د عقوبت لپاره د انابت).

**تفسیر:** «غفور» یعنې مغفرت کوونکی دی، چې په لغو او چټي (بېکاره) قسمو باندې مؤاخذه نه کوي، او «حلیم» دی چې په مؤاخذه کې تلوار نه کوي، ښایي چې بنده توبه وکړي.

لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۲۶﴾ وَاِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَاِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۲۷﴾

دی هغو کسانو لره چې قسمونه کوي له (جماع د) ښځو خپلو نه (مطلقا یا تر څلورو میاشتو پورې) انتظار د څلورو میاشتو، نو که بیا رجوع وکړه دوی (او سره یو ځای شول) پس بېشکه چې الله ښه بخښونکی (د خطیئاتو) پوره رحم کوونکی دی. او که قصد وکړ دوی د طلاق (او رجوع یې ونه کړه) پس بېشکه چې الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (پر ټولو احوالو).

**تفسیر:** ایلاء قسم او سوګند خوړولو ته وایي، که څوک قسم وخوري چې خپلې ښځې ته به تر ټاکلې مودې نه نژدې کیږم، نو دا موده که له څلورو میاشتو کمه وه، نو ورته روا ده چې ددغې مودې تر پایه انتظار وکړي، او بیا وروسته ورسره جماع وکړي، په دغه موده کې ښځه حق نه لري چې د رجوع مطالبه ورڅخه وکړي، لکه چې دا صورت د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه بخاري شریف او صحیح مسلم کې ثابت دي.

او که دغه موده تر څلورو میاشتو زیاته وه، نو د څلورو میاشتو په پوره کېدو سره ښځې ته روا ده، چې له سړي څخه وغواړي چې یا ورته طلاق ورکړي، او یا ورته رجوع وکړي، نو د جمهورو مذهب دا دی چې تش د څلورو میاشتو په تېرېدو سره طلاق نه واقع کیږي، او بعض علما وایي چې په بائن طلاق سره طلاقیږي.

وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ ۚ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِیْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ

او طلاقې کړی شوې ښځې دې انتظار کوي په ځانو خپلو (له نکاح نه تر) درېو حیضو (کاملو) پورې، او نه دي روا دوی لره چې پټوي به دوی هغه شی چې پیدا کړی دی الله په ارحامو د دوی کې (له ولده یا حیضه) که وي دوی چې ایمان لرونکې وي په الله او په ورځې آخرې (چې قیامت دی).

**تفسیر:** کله چې نارینه خپلې ښځې ته طلاق ورکړي، نو هغه ښځه له بل چا سره تر هغه پورې خپله نکاح نشي تړلی، څو چې درې «حیضه» یې پوره نشي، دا د دې لپاره که چېرې حامله وي، حمل به یې ښکاره شي، او د یوه اولاد، به د بل چا نه شي، نو ځکه پر ښځې باندې فرض دي چې هر هغه شی چې د هغې په ګېډه کې وي؛ هغه ښکاره کړي، حمل وي، او که حیض وي، او دې مودې ته په شرع کې «عدت» وایي.

**فائده:** دلته له مطلقاتو ځنې خاص هغه ښځې مراد دي، چې هغوی ته له نکاح څخه وروسته د صحبت (مجامعت) یا «شرعي خلوت» نوبت وررسېدلی وي، او دې ښځو ته «حیض» هم ورځي، پر هغې ښځې باندې چې ورسره مجامعت یا «صحیحه خلوت» نه وي شوی، وروسته له طلاقه بیخي «عدت» نشته، او هغه ښځه چې بیخي نه حائضه کیږي، مثلاً وړه یا داسې بوډۍ او زړه وي چې له وینې پاکه وي، یا حامله وي، نو په دوه وو وړاندنیو (اولنو) صورتونو کې؛ د دوی د عدت موده درې میاشتې ده، او د اولاد لرونکې (حاملې) عدت، د هغې د اولاد زېږول (د حمل وضعه) ده، هغه ښځه چې خپلواکه (آزاده) نه وي، بلکه وینځه وي، که حائضه کیږي؛ نو د هغې د عدت موده دوه حیضه دي، که نه حائضه کیږي، نو د صغارت او کبارت په صورت کې د هغې عدت یو نیمه میاشته ده، او په هغه صورت کې چې حامله وي، نو د اولاد زېږول (د حمل و ضعه) ده، دا تفصیلات له نورو آیتونو او احادیثو څخه ثابت شوي دي.

وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِيْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًا ؕ

او مېړونه (خاوندان) د دوی ښه لائق (حقدار) دي په بیا کولو د ددې ښځو په دې موده کې که اراده لري دوی د جوړښت (په خپلو منځو کې).

**تفسیر:** یعنې که نارینه د عدت په موده کې وغواړي چې هغه ښځه بېرته ځان ته وګرځوي؛ کولی شي، که څه هم د هغې ښځې خوښه نه وي، خو ښایي چې په دې ګرځولو کې مقصود ښه سلوک او اصلاح وي، او ښځه ونه ربړوي، او ویې نه وېروي، او په دې یې نه مجبوره وي چې خپل «مهر» ورپرېږدي، چې دا ټول ظلم او تېری دی، که داسې کوي ګناهګاریږي، که څه هم رجعت یې صحیح دی.

وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِيْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۠ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ؕ

او شته دي ښځو لره (حقوق په مېړونو (خاوندانو) باندې) په شان د هغو (حقوقو) چې په دوی دي (د خاوندانو) په معروف (ښه وجه) سره، او شته نارینه وو لره په دې ښځو باندې بهتروالی (فضیلت).

**تفسیر:** یعنې دا امر خو حق دی، همغسې چې د نارینه وو حقوق پر ښځو باندې دي، همغه شانې د ښځو حقوق په نارینه وو باندې هم دي، چې سم له اصولو سره د هغو حقوقو په ځای راوړل؛ پر دواړو باندې ضروري دي، نو اوس نارینه لره ښایي چې له خپلې ښځې سره په هیڅ ډول (طریقه) بده ګذاره او خراب سلوک ونه کړي، بلکه د ښځې هر راز حق تلفي ممنوعه ده، مګر دا یو فضیلت او فوقیت نارینه پر ښځو باندې لري، چې د رجعت واک او اختیار خامخا نارینه لره دی.

وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾

او الله ښه غالب (د احکامو په انفاذ) او د حکمت والا دی.

ﭐلطَّلَٰقُ مَرَّتَانِۖ فَإِمۡسَاكُۢ بِمَعۡرُوفٍ أَوۡ تَسۡرِيحُۢ بِإِحۡسَٰنٖۗ

(رجعي) طلاق دوه کرته دی، نو بیا ساتنه (د ښځو) ده (په رجوع سره) په معروف (ښه وجه) سره، یا پرېښودل دي (ددې ښځو) په ښه وجه سره.

**تفسير:** پخوا له اسلام څخه داسې دود (رواج) او دستور وو، چې لس شل ځلې هر څومره چې د نارینه زړه غوښته، خپلې ښځې ته به يې طلاق ورکاوه، مګر پخوا د عدت له ختمېدلو څخه به يې بيا رجعت ورته کاوه، او بيا به يې طلاق کوله، او په دې ډول ځينو نارينه وو خپلو ښځو ته زيات تکليف او زحمت ورپېښاوه، نو بنا پر دې دا آيت نازل شو، هغه طلاق چې رجعت په کې کيدی شي، ټول سره دوه ځلې دی، چې په هغه کې نارينه واکمن دي چې د «عدت» په شپو کې بېرته له سره رجعت وکړي، يا يې په ښه ډول سره خوشې کړي، وروسته د «عدت» له تېرېدلو څخه «رجعت» نه پاتې کيږي، هو ! که دوی دواړه بيا سره خوښ وو، بيا نکاح تړلی شي، او که درې طلاقه ورکړي، نو بيا سره له خوښې هم دوی نکاح نشي سره تړلی، تر څو چې هغه ښځه بل مېړه (خاوند) ونه کړي، او له هغه سره جماع او خلوت ونه کړي.

**فائده:** له «امساك بمعروف» او له «تسريح باحسان» څخه دا غرض دی چې که رجعت کوي نو ښايي چې د موافقت او حسن معاشرت لپاره وي، او د ښځې بند ساتل او ربړول (ازارول) مقصود نه وي، لکه چې د دوی په منځ کې دستور وو، که نه په سهولت او ښه ډول سره دې پرېږدي.

وَلَا يَحِلُّ لَكُمۡ أَن تَأۡخُذُواْ مِمَّآ ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ شَيۡـًٔا إِلَّآ أَن يَخَافَآ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِۖ

او روا نه دي تاسو ته (ای خاوندانو) چې واخلئ تاسې له هغه مال څخه چې ورکړی وي تاسې دوی ته (په «مهر» کې) هيڅ شی، مګر که وېرېږي دوی (يعنې مېړه «خاوند» او زوجه) چې وبه نشي ساتلی دوی دواړه احکام د الله.

**تفسير:** يعنې نارينه وو لره دا روا نه ده؛ چې له ښځو څنې د طلاق په بدل کې هغه مهر بېرته واخلي چې ورکړی يې دی، هو ! دا هلته روا دی چې څه نا چاري وي، او په هيڅ ډول د دوی په منځ کې موافقت سره رانشي، او دوی له دې خبرې څنې وېرېږي، چې دمخالفت له شدته د الله تعالی په احکامو باندې ټينګ نه شي پاتې کېدی، او په ښه ډول يو له بله سره معاشرت او ژوندون نشي کولی، او د نارينه له جانبه د زوجې د حقوقو په ادا کې څه تېری او قصور هم نه وي، که نه دهغه مال اخيستل نارينه لره ناروا او حرام دي.

فَإِنۡ خِفۡتُمۡ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَا فِيمَا ٱفۡتَدَتۡ بِهِۦۗ

پس که وېرېږئ تاسې چې وبه نشي ساتلی دوی (دواړه) حکمونه د الله (په زوجيه وو امورو کې) نو نشته هيڅ ګناه په دوی دواړو باندې په هغه شي کې چې فديه ورکړي په هغه سره (دا ښځه او ځان خلاص کړي).

**تفسير:** يعنې ای مسلمانانو ! که تاسې له دې نه وېرېږئ چې د نارينه او ښځې په منځ کې داسې جګړې او مخالفتونه دي؛ چې د هغوی په ژوندون کې موافقت نه سره راځي، نو په دې صورت کې په دوی باندې څه ګناه نشته، چې ښځه څه مال ورکړي، او خپل ځان د هغه د نکاح له قيده جدا کړي، او نارينه د هغې مال واخلي، دېته «خلع» وايي، کله چې د ضرورت په حالت کې د مېړه (خاوند) او د زوجې لپاره «خلع» روا شول، نو ټولو مسلمانانو ته ښايي چې په دې کې سعي وکړي.

**فائده:** یوه ښځه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم حضور ته حاضره شوه، او وېې ویل: چې زه له خپل میړه (خاوند) څخه خفه یم، او نه غواړم چې د هغه سره واوسم، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د دې موضوع تحقیق وفرمایه، هغې ښځې وویل چې: مېړه (خاوند) مې نه زما د حقوقو په ادا کولو کې کمي کوي، او نه زه د هغه په اخلاقو او دیانت باندې څه اعتراض لرم، خو زما هغه طبعا بدې شي، رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له هغې ښځې څخه «مهر» بېرته واخیست، او مېړه ته یې ورکړ چې طلاقه یې کړه، نو په دې مناسبت دا آیت نازل شو.

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَعْتَدُوْهَا ۚ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۲۹﴾

دا (ذکر شوي احکام) حدود د الله دي، نو تاسې مه تېرېږئ ! له حدودو د الله، او هر (هغه) څوک چې تېرېږي له حدودو د الله نه، نو دغه کسان هم دوی دي ظالمان.

**تفسیر:** یعني دا ټول مذکوره احکام: طلاق، رجعت، خلع، حدود او قواعد دي، د پاک الله مقرره اصول دي، نو د هغو تعمیل او پابندي ډېره ضروري ده، او ښايي چې هیڅ یو قسم مخالفت تغییر او کوتاهي په هغه کې ونه کړه شي !.

فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهٗ مِنْۢ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ۗ فَاِنْ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يَّتَرَاجَعَآ اِنْ ظَنَّآ اَنْ يُّقِيْمَا حُدُوْدَ اللّٰهِ ۗ وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۰﴾

نو (وروسته له دې دوو طلاقو څخه) که بیا یې طلاقه کړه دا ښځه (درېیم ځلې) پس بیا حلاله نه ده (دا ښځه) ده لره پس (له دې نه)، تر هغه پورې چې په نکاح واخلي دا ښځه میړه (خاوند) بل پرته له ده نه، نو که طلاقه کړه دوهم مېړه (هم) دا ښځه (او عدت یې تېر شو) پس نشته هیڅ ګناه په دغو دواړو ښځه او لومړني مېړه، چې بیا سره رجوع وکړي دواړه، که ګمان وي ددې خاوند او ښځې په دې چې قائم به کړي دوی احکام د الله (او په ځای به یې کړي)، او دا (ذکر شوي احکام) حکمونه د الله دي چې بیانوي یې (دهغه) قوم لپاره چې پرې پوهیږي (او په مقتضی دعلم عمل کوي).

**تفسیر:** یعني که مېړه (خاوند) خپلې ښځې ته درېیم ځلې «طلاق» ورکړي، نو بیا به هغه ښځه ده ته هیڅ نه روا کیږي، تر څو هغه ښځه له بل کوم سړي سره خپله نکاح ونه تړي، او هغه بل خاوند له دې سره صحبت (جماع) ونه کړي، او بیا پخپله خوښه سره «طلاق» ور نکړي، او د هغه دویم مېړه عدت هم پوره نشي، وروسته له دې نه چې د «فقهاوو» په اصطلاح ورته «حلاله» وایي د هغه لومړني خاوند سره دویمه نکاح هلته تړل کیږي، چې د پاک الله د احکامو د ساتلو فکر له دوی سره وي، یعنې هر یو د بل حقوق په ښه شان سره وساتي، او پخپلو نفسونو باندې په ښه شان سره اعتماد او اطمینان ولري، که نه خامخا بیا د دوی په منځ کې جنګ جنجال او شور ماشور پېښیږي، او بیا د حقوقو اتلاف ته نوبت رسیږي، او په ګناه کې اخته کیږي، حال دا چې د نکاح اساس په محبت، مینه، الفت او ښه ژوندون د نکاح غرض او غایه ده، اګر که د صحت شرط یې نه دی.

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ سَرِّحُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ ۪ وَلَا تُمْسِكُوْهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعْتَدُوْا ۚ

او کله چې طلاقې کړئ تاسې ښځې پس ورسیدې دوی (آخر د) عدت خپل ته (یعنې چې د عدت ختمېدلو ته نژدې شي) نو وساتئ ! دوی په ښه ډول سره (یعنې رجوع ورته وکړئ !) یا

خوشې کړئ ! دوی په معروف (ښه ډول سره) او مه ساتئ تاسو ! دا ښځې (په رجعت سره) لپاره د ضرر رسولو له جهته ددې چې (پر دوی باندې) تېرى وکړئ !.

تفسیر: یعنې د عدت تر ختمېدلو پورې مېړه (خاوند) واکمن او مختار دی، چې له هغې ښځې سره بیا موافقت او اتحاد وکړي، او رجوع ورته وکړي، یا يې په خوښې او خوشالی سره بیخې پرېږدي، دا هیڅکله ورته روا نه ده چې په بند کې يې وساتي، او د ربړولو (ازارولو) لامله بیا رجوع ورته وکړي، لکه چې ځینو سړیو همداسې کول.

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ۗ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ۫ وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۳۱﴾

او هر څوک چې وکړي داسې کار نو په تحقیق سره ظلم يې وکړ په ځان خپل، او مه ګرځوئ ! آیاتونه د الله (داسې چې په اعراض او تهاون سره) مسخرې (پرې وکړئ !) او یاد کړئ ! نعمت د الله (چې اسلام دی) په تاسې باندې، او (یاد کړئ !) هغه چې نازل کړی دی (الله) په تاسې باندې چې کتاب دی او حکمت (سنت د رسول الله صلی الله علیه وسلم) دی، چې پند درکوي الله تاسې ته په هغو (نازل شوو احکامو) سره، او وویرېږئ ! له الله نه او پوه شئ ! تاسې چې ببشکه الله په هر شي باندې ښه پوه دی.

تفسیر: په نکاح، طلاق، ایلاء، خلع، رجعت، حلاله او نورو کې لوی لوی حکمتونه او مصلحتونه دي، په دوی کې پلمې (تدبیرونه) او بهانې کول، او د بیهوده او چټي اغراضو لامله مداخله کول؛ داسې دي لکه چې څوک د پاک الله جل وعلی شأنه په احکامو باندې مسخرې او ټوقې کوي (نعوذ بالله من ذلک) ! مثلا چې څوک رجعت وکړي، او مقصود يې داسې وي، چې ښځه وربړوي (تکلیف کړي)، نو پاک الله ته داسې خبرې او ارادې ټولې ښکاره دي، او له داسې پلمو (فریبونو) څخه پرته له ضرره بل کوم شی په لاس نه ورځي.

وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ

او هر کله چې طلاقې کړئ تاسې ښځې، پس ورسېدې دوی ټاکلې (مقررې) مودې خپلې ته (په دې شانې چې عدت يې تېر شي) نو مه منع کوئ تاسې دوی ! له دې نه چې په نکاح واخلي دوی مېړونه خپل کله چې دوی سره خوښ وي په خپلو منځو کې په معروف (سم له دستوره) سره.

تفسیر: یوې ښځې ته د دې خاوند یو یا دوه طلاقه ورکړل، او بیا يې «عدت» کې «رجعت» هم ورته و نه کړ، کله چې د دې ښځې د عدت موده ختمه شوه، نو د نورو غوښتونکو په منځ کې د دې مخطوبې ښځې هغه پخوانی مېړه هم د خپلې نکاح پیغام ورولېږه، ښځه هم په دې خبره باندې خوښه وه، مګر د دې ښځې ورور ته قهر ورغی، او دا نکاح يې معطله کړه، په دې خبره باندې دا حکم نازل شو، چې ښایي د ښځې خوشالي او هوسایي (آرام) تر نظر لاندې ونیوله شي !، او لازم دي چې هغې له خوښې سره سم نکاح وتړله شي !، او نه ښایي چې د کوم بل چا خیال او ناخوښي پکې مداخله وکړي، دا خطاب عام دی، او ټولو هغو کسانو لره شامل دی، چې د ښځو د نکاح مخه نیسي، عام له دې نه چې دا منع کوونکی همغه لومړنی خاوند وي، چې دې ښځې ته يې طلاق ورکړی دی، او اوس د ښځې مخه نیسي چې له بل چا سره نکاح ونه تړي، یا د دې ښځې کوم ولي او وارث وي، چې دا ښځه نه پرېږدي چې همغه خپل پخوانی مېړه

یا بل کوم خاوند وکړي، خو ددې مقصد دا نه دی چې د ولي له اجازې پرته نکاح کولی شي، ځکه چې د ولي اجازه په نکاح کې شرط ده، لکه چې په صحیحو أحادیثو کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ثابت دي.

ذٰلِكَ يُوعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ

دا (حکم د نه منع کولو) پند ورکاوه کیږي، په ده سره هغه چاته چې وي دی له تاسې نه؛ چې ایمان لري په الله او په ورځې آخرې باندې.

تفسیر: یعنې له هغه حکمه چې مذکور شو ایماندارو ته پند ورکاوه شي، ځکه چې له دې پند څخه هم دوی ګټه اخلي، او که نه دا پند ورکول د ټولو خلقو لپاره دی، او په هغه کې د هیڅا څه خصوصیت نشته، او دمؤمنانو له اختصاص څخه ضمنا نورو ته تهدید او دهغو تحقیر هم ترې ښکندیږي.

ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۳۲﴾

دا (د منع او ضرر ترک) ډیر غوره دی تاسې (او دوی) ته، او ښه پاکیزه دی، او الله عالم دی (پر هر شي) او تاسې نه پوهیږئ (په خپل خیر هم).

تفسیر: یعنې د هغې ښځې په نه ستنولو (واپس کولو) له نکاح څنې او د هغې ښځې په نکاح کې داسې ښېګڼه (فائده) او پاکیزګي ده چې د نکاح په ممانعت کې هغه هیڅ کله نشته، کله چې ښځه خپل لمړني مېړه ته راغبه وي، نو ښایي چې له هغه سره یې نکاح وتړله شي، ځکه په دې نکاح کې هسې ښېګڼه او پاکیزګي ده چې د بل چا په نکاح کې داسې ښېګڼه هیڅ نشته، الله تعالی ته د هغوی د زړه خبرې او راتلونکې ګټې او تاوان داسې ښه معلوم دی، چې تاسې پرې نه پوهیږئ.

وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ؕ

او میندې (مورګانې) دې شودې (پی) ورکوي اولاد خپل ته دوه کاله پوره، دا (حکم) هغه چا لره دی چې اراده لري د دې چې پوره کړي (نېټه د) تي ورکولو.

تفسیر: یعنې په میندو باندې حکم دې چې خپل اولاد ته دې تر دوو کلو پورې شودې ورکړي !، او دا موده هغه چا لره ده چې مور او پلار یې وغواړي؛ چې هغه موده پوره کړي، که نه په دې موده کې لږوالی هم روا دی، لکه چې په وروستنې آیت کې راځي، او په دې حکم کې هغه میندې هم داخلې دي، چې د هغوی نکاح باقي وي، یا طلاقې شوې وي، او یا د هغوی د «عدت» موده تېره وي، هو ! دومره فرق شته چې په هر حال مېړه (خاوند)به نفقه او کالي (جامې) منکوحې ته او معتدې ته ورکوي، عام له دې نه چې ښځه هغه مولود ته شودې ورکوي، یا یې نه ورکوي، او کله یې چې «عدت» ختم شو، نو بیا به نفقه او کالي (جامې) د شودو ورکولو لامله ورکوي، او له آیت څنې دا معلومه شوه چې د شودو ورکولو د مودې انتهاء پوره دوه کاله ده، چې ښایي هغه موده په مور یا په بله کومه ښځه باندې پوره شي !، او پلار هم په هم دغو دوو کلونو کې مجبور دی چې د خپل وړوکي د شودو اجرت اداء کړي !، او دا تر ښه معلومیږي چې د شودو ورکولو موده له دوه کلونو څنې زیاته نه ده.

وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ لَّهٗ بِوَلَدِهٖ ۗ

او ده پر هغه چا باندې چې بچي زیږول شوی دی ورته (یعنې پلار)، روزي د دوی (یعنې د میندو) او کالي (جامې) د دوی (یعنې د میندو) په معروف (سم له دستوره) سره، او زور نشي کولی په

هيڅ نفس باندې مګر په اندازه د توان د ده سره، نه دې ضرر رساوه کيږي مور ته په سبب د ولد ددې سره، او نه (دې ضرر رساوه شي) پلار ددې ولد ته په سبب د ولد د ده سره.

تفسير: يعنې پلار ته ښايي چې د ورو کي مور ته ډوډۍ او کالي (کپړې) په هر حال کې ورکړي ! په اول صورت کې ددې لامله چې هغه د ده په نکاح کې ده، او په دويم صورت کې د دې لپاره چې په «عدت» کې ده، او په دريم صورت د شودو ورکولو اجرت په ده باندې کيږي، او نه ښايي چې د ورو کي مور او پلار يو بل ته د هغه ورو کي لامله څه ربړ (آزار) او تکليف ورکړي، مثلا مور ته لازم نه دي چې بې سببه له شودو ورکولو څخه مخ واړوي، يا پلار بې سببه ورو کی له مور څخه جلا (جدا) کړي، او د بلې کومې ښځې په شودو يې وروزي، يا د هغه د مور په نفقه او پوښاک کې څه تنګي وکړي.

وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ

او شته په وارث (د پلار) باندې په شان د هغه (نفقه چې په پلار وه).

تفسير: يعنې که پلار مړ شي، نو په ورو کي او د ورو کي په وارثانو باندې هم دا خبره لازمه ده چې د شودو رودلو په موده کې د هغه مور ته د ډوډۍ او کاليو (جامو) مصارف ورکړي، او هيڅ څه تکليف ورته ونه رسوي !، او له وارث څخې هغه وارث مراد دی چې محرم هم وي.

فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَن تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ۗ

نو که غواړي دوی دواړه (مور او پلار) بېلول (دماشوم له تي څخې پخوا له دوه کلونو څخه) په خوښۍ سره چې وي له دوی دواړو نه او په مشورې (د دواړو سره) پس نشته هيڅ ګناه پر دوی باندې (په دې کې).

تفسير: يعنې که مور او پلار د کوم مصلحت له امله د دوه کلونو په منځ کې له مشورې او رضامندۍ څخه وروسته؛ ورو کی له تي بېلوي، او شودې نه ورکوي، نو پکې څه ګناه نشته، مثلا چې دمور شودې ښې نه وي.

وَإِنْ أَرَدتُّمْ أَن تَسْتَرْضِعُوا أَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِذَا سَلَّمْتُم مَّا آتَيْتُم بِالْمَعْرُوفِ ۗ

او که قصد وکړئ تاسې چې دايي ونيسئ ! (بله ښځه لپاره) د تي ورکولو اولاد خپل ته؛ نو نشته هيڅ ګناه پر تاسې باندې کله چې وسپارئ تاسې هغه شی چې قصد د ورکولو کړي وي تاسې دوی ته په معروف (سم له دستوره) سره.

تفسير: يعنې ای نارينه وو ! که تاسې د کوم مصلحت او ضرورت لامله علاوه له موره د بلې کومې ښځې په شودو باندې خپل ورو کی وروزئ (وپالئ) نو په دې کې هم څه ګناه نشته، مګر داسې نه چې د مور له برخې او حق څخې کوم شی کم شي، بلکه سم له دود (رواج) او دستور سره د کوم شي ورکول چې مور لره وي؛ هغه پوره ورکړئ ! او دا مطلب هم کېدی شي چې د دايي حق پوره ورکړئ !.

وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٣﴾ وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا ۖ

او وو ېرېږئ ! له الله، او پوه شئ ! چې بېشکه الله په هغو شيانو چې کوئ يې تاسې ښه ليدونکی

دی. او هغه کسان چې مړه شي له تاسې نه او پرېږدي دوی ښځې؛ انتظار دې کوي دا ښځې (د نکاح کولو څخه) په ځانو خپلو څلور میاشتې او لس (ورځې).

تفسیر: پخوا له دې نه دا خبره تېره شوه چې د طلاق په عدت کې د درې حیضونو انتظار دی وکړی شي !، اوس فرمایي چې د مرګ په عدت کې دې د څلورو میاشتو او لسو ورځو انتظار وباسي !، په دې موده کې که دا خبره ښکاره شوه، چې هغه ښځه حامله نه ده، نو له بل چا سره د نکاح ترلو اجازه ورته شته، که نه وروسته د اولاد زېږولو څخه ورته اجازه ده؟، ددې تشریح به د «الطلاق» په سورت کې راشي، په حقیقت کې درې حیضه یا د څلورو میاشتو او لسو ورځو انتظار د حمل د ښکاره کېدلو لپاره تاکلی شوی دی، (او د وینځې عدت د اصیلې نیمایي دی).

فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِي أَنفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ

نو کله چې ورسیږي دوی مودې د عدت خپل ته، پس نشته هیڅ ګناه پر تاسې باندې په هغه کار کې چې کوي یې دا ښځې په (حق د) نفسونو خپلو کې په ښه توګه (سم له شرعي اصولو) سره.

تفسیر: کله چې کونډې ښځې خپل عدت پوره کړي، یعنې غیر حامله ښځه څلور میاشتې او لس ورځې، او حامله ښځه د اولاد تر راوړلو پورې معطله شوه، نو بیا دوی ته د شریعت له احکامو سره سم له بل چا سره د نکاح ترلو اجازه شته، او نه پرې ګناهګارېږي، زینت، عطر وهل، او د خوشبویی استعمالول ټول ورته جائز دي.

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ۝٢٣٤ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُم بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ أَوْ أَكْنَنتُمْ فِي أَنفُسِكُمْ ۚ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّا أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۚ وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ ۚ

او الله په هغو شیانو چې کوئ (یې) ښه خبردار دی (نو جزا به پرې در کړي). او نشته هیڅ ګناه په تاسې باندې په هغه (کار) کې چې اشاره کوئ تاسې په هغه سره، چې غوښتل (دهغو) ښځو دې (چې په عدت کې وي) یا (یې) پټ ساتئ په زړونو خپلو کې، معلوم دی الله ته چې بېشکه تاسې ژر به یاد کړئ په غوښتلو سره د نکاح دا ښځې، ولیکن وعده مه کوئ ! له دوی سره (د نکاح) په پټه مګر (همدا) چې ووایئ تاسې ویل ښه !(نېک له شریعت او رواجه سره سم) او مه کوئ قصد (د ترلو) د غوټې د نکاح (د دوی) تر هغه پورې چې ورسیږي ټاکلی (مقرر) عدت انتها د نېټې خپلې ته.

تفسیر: ددې آیت خلاصه داده: کله چې ښځه د خپل مېړه (خاوند) له نکاح څخې جلا شوه، نو تر هغه پورې چې د دې «عدت» پوره شوی نه دی، بل چا ته دا خبره جائزه نه ده، چې له هغې سره خپله نکاح وتړي، یا صافه وعده له هغې څخې واخلي، یا په ښکاره ډول سره پیغام ورولیږي، لیکن که په زړه کې نیت وکړي، چې وروسته له عدته به له هغې سره خپله نکاح وتړم، یا په اشاره سره خپل مطلب ورواوروي، چې بل څوک له ده نه وړاندې پیغام ور ونه لیږي، کله چې هغې ښځې ته واوروي چې: «ستا غوندې مېرمنې ته قدر او عزت هر څوک ساتي، یا زه غواړم چې له کومې پتمنې (غیرتي) مېرمنې سره خپله نکاح وتړم» نو دی په هسې خبرو باندې هیڅ نه ګناهګارېږي، مګر صاف او ښکاره پیغام هیڅکله باید ور ونه لیږي.

وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِيٓ أَنْفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ ۚ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿٢٣٥﴾

او پوه شئ تاسې ! چې بېشکه الله معلوم دی ده ته هغه څه چې په زړونو ستاسې کې دي، نو ووېرېږئ ! له ده نه (او د نا مشروع شي قصد مه کوئ !) او پوه شئ تاسې ! چې بېشکه الله ښه بخښونکی (د خطیئاتو) ډېر تحمل والا دی (د عقوبت په تأخیر لپاره د انابت).

لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَمَتِّعُوهُنَّ عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ مَتَاعًا بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٣٦﴾

نشته هیڅ تکلیف (ګناه) په تاسې باندې که طلاقې کړئ تاسې ښځې (خپلې) تر څو چې صحیح خلوت مو نه وي کړی له دوی سره، او مقرر کړی مو (نه) وي له پاره د دوی ټاکلی مهر، او څه خرڅ ورکړئ ! دوی ته (واجب) دی پر غني (مېړه) باندې په اندازه (د توان) د ده، او (شته) په فقیر (مېړه) په اندازه (د توان) د ده، خرڅ چې په معروف (سم له اصولو) سره وي، حق (لازم) دی په نیکي کوونکو (مسلمانانو) باندې.

تفسیر: که د نکاح تړلو په وخت کې د مهر ذکر ونشو، او بې د مهر له ټاکلو څخه نکاح وتړله شوه، نو دا نکاح صحیح او روا ده، او مهر به وروسته له نکاح څخه مقررېږي، لیکن په دې صورت کې که پخوا له صحیحه خلوته او لاس ورغځولو او مجامعت څخه مېړه طلاق ورکړي، نو څه مهر پرې نشته، خو په مېړه باندې لازم دي چې له خپله طرفه هغې ښځې ته څه شی ورکړي، هغه دا چې لږ تر لږه درې کالي (جامې)، کمیس، پرتوګ، او ټکری دی سم له خپله حاله سره په ډېره خوښۍ او خوشالي سره ورکړي !.

وَإِنْ طَلَّقْتُمُوهُنَّ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَمَسُّوهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ إِلَّآ أَنْ يَعْفُونَ أَوْ يَعْفُوَا الَّذِي بِيَدِهِ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ وَأَنْ تَعْفُوٓا أَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۚ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ۚ إِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٣٧﴾

او که طلاقې کړئ تاسې دوی (یعنې ښځې) پخوا له مسه کولو د دوی (یعنې د ښځو) او په تحقیق سره ټاکلی مو وو لپاره د دوی مهر، نو (لازم) دي (په تاسې باندې) نیمایي د هغه څه چې ټاکلي مو وي، مګر که عفوه وکړي دا ښځې (چې ټول مېړه ته ورپرېږدي) یا عفوه وکړي هغه سړی (مېړه) چې په لاس د ده کې ده غوټه د نکاح (چې کامل مهر ورکړي)، او دا چې عفوه وکړئ تاسې (ای ښځو او مړونو دغه عفوه) ډېره نږدې ده پرهېزګارۍ ته، او مه هېروئ تاسې فضل (احسان کول) په خپلو منځو کې، بېشکه الله پر هغه څه چې کوئ یې تاسې ښه لیدونکی دی.

تفسیر: که د نکاح په وخت کې مهر مقرر شوی وي، او له لاس وروړلو څخه پخوا مېړه (خاوند) خپلې ښځې ته طلاق ورکړي، نو نیمایي مهر پرې لازمېږي، مګر که ښځه یا هغه نارینه چې د نکاح د غوټې ټینګول او پرانیستل د هغه په اختیار کې دي؛ له خپل حقه تېر شي؛ ښه دی، د ښځې ښېګڼه داده چې هغه نیم مهر هم ورپرېږدي، او د نارینه ښېګڼه داده چې هماغه مقرر مهر پوره ور ورسوي، او که پوره مهر یې رسولی وي، نو نیم دې ترې بېرته وانخلي، بلکه ټول مهر دې ورپرېږدي، بیا یې وفرمایل: «که نارینه ور تېر شي، نو له (تقوی) سره ډېر وړ او مناسب دی، ځکه چې پاک الله نارینه ته لویي ورکړې ده، او د نکاح د ساتلو، او دطلاق ورکولو واکمن او مختار یې ګرځولی دی»، کله چې د نکاح په سبب په ده باندې ټول «مهر» لازمېږي، او اوس دې غواړي چې په لاس نه وروړلو او په طلاق ورکولو سره

ځان د نيمايي مهر څخه خلاص کړي، نو دا کار له تقوی سره مناسب نه دی، ځکه چې د ښځې له پلوه هيڅ قصور نه دی شوی، او هر څه چې شوي دي، د نارينه له خوا شوي دي، نو بنا په دی نارينه لره ښايي چې له عفوې او مېړانې (بهادرۍ) څخې کار واخلي.

حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ ﴿٢٣٨﴾

ساتنه کوئ تاسې ! پر (ټولو) لمونځونو باندې او (خصوصا) په لمانځه منځنۍ باندې (چې مازديګر دی)، او ودرېږئ تاسې ! الله ته وېرېدونکي (په ادب سره).

تفسير: له منځني لمانځه څخې مراد د مازديګر لمونځ دی، چې د شپې او ورځې په منځ کې دی، ددې لمانځه تاکيد يې ځکه زيات وفرمايه، چې په دې وخت کې دنيوي مشاغل او کارونه ډېر پېښيږي، او ويې فرمايل چې ودرېږئ په ادب سره !، يعنې په لمانځه کې هسې کوم حرکت ونه کړئ، چې له هغه څخه داسې څرګند شي، چې ګواکې تاسې لمونځ نه کوئ، يا مو لمونځ پرې مات شي، لکه خوړل، او څښل، يا له چا سره خبرې کول، يا خندل، يا يې د ټولو حقوقو ساتنه کوئ، لکه: طهارت، اذان، اقامت، جمعه او جماعت، د نيت خلوص، حضور، خشوع، خضوع، طمأنيت، فرائض، واجبات، سنن، او مستحبات.

فائده: د طلاق په حکمونو کې د لمانځه د حکم بيانول، يا دا وجه لري چې نه ښايي دنيوي معاملې، او يو له بله سره جګړې تاسې د پاک الله له ياده غافل کړي، يا يې دا وجه ده، چې د هوا او هوس بندګانو ته د حرص او بخل د غلبې له امله د عدل پوره کول، او له انصاف څخه کار اخيستل، او بيا هغه هم د رنځ او د طلاق په حالت کې، ډېر سخت او درانه دي، بيا په داسې صورت کې چې: د ﴿وَأَن تَعْفُوا﴾ او د ﴿وَلَا تَنسَوُا الْفَضْلَ﴾ رعايت هم په کې وشي، له هغوی څخې د هسې تعميل توقع او هيله (اميد) لرل، بيخي مستبعد او لرې په نظر راځي، نو چاره يې داسې وفرمايله چې: د لمانځه محافظت او دهغه ساتنه، او تل ادا کول، او د هغه د ټولو حقوقو او شرايطو رعايت، د هغو عمده علاج دی، ځکه چې لمونځ د فضايلو په تحصيل او د رذائلو په ازاله کې لوی اثر لري.

فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا ۖ فَإِذَا أَمِنتُمْ فَاذْكُرُوا اللَّهَ كَمَا عَلَّمَكُم مَّا لَمْ تَكُونُوا تَعْلَمُونَ ﴿٢٣٩﴾

نو که وېرېدئ تاسې (له دښمنه يا له بل شي نه) نو (لمونځ کوئ تاسې !) په پياده تګ يا په سورلۍ سره، نو کله چې په امن شئ تاسې، نو يادوئ تاسې ! الله لکه چې ښوولی يې دی تاسې ته هغه څه چې نه وئ تاسې چې (پرې) پوهېدئ.

تفسير: يعنې د جنګ او ددښمن د وېرې په وخت کې له مجبوريته په سورلۍ او پياده تګ کې هم په اشاره سره لمونځ کول روا دي، اګر که د هسې لمونځ کوونکي مخ د قبلې په لوري هم نه وي.

وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا وَصِيَّةً لِّأَزْوَاجِهِم مَّتَاعًا إِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ إِخْرَاجٍ ۚ

او هغه کسان چې مړه شي له تاسې نه او پرېږدي دوی (خپلې) ښځې (لازم دی پر دوی باندې چې) وصيت دې وکړي لپاره د ښځو خپلو، د خرڅ ورکولو تر يوه کاله پورې، بې له ايستلو (له خپلو کورونو څخه).

تفسير: دا حکم پخوانی دی، کله چې د ميراث احکام نازل شول، او د ښځو برخې څرګندې شوې، او د ښځې د «عدت» موده څلور مياشتې او لس ورځې وټاکلی شوې، نو وروسته له هغه د دې آيت حکم منسوخ شو.

فَإِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِي مَا فَعَلْنَ فِي أَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَعْرُوفٍ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٤٠﴾

نو که پخپله ووتلې (دا ښځې له خپلو کورونو څخه) نو نشته هيڅ ګناه (او نفقه او مسکن) په تاسې باندې په هغه شي کې چې کوي يې دوی په خپلو ځانو کې له معروفه (له ښو کارونو چې پاکي او زينت دی) او الله ډېر غالب (قوي په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا دی (چې هر کار په حکمت او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعنې که هغه ښځه په خپله خوښه د کال له ختمېدلو څخه پخوا له کوره ووځي، نو ای وارثانو ! په دې کار کې چې ښځه يې سم له شريعته سره د خپلو ځانو لپاره وکړي، په تاسې باندې هيڅ ګناه او وبال نشته، يعنې که وغواړي چې مېړه وکړي، يا ښه کالي واغوندي، او عطر استعمال کړي، په دې کې په دوی باندې هيڅ يو حرج نشته.

وَلِلْمُطَلَّقَاتِ مَتَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ ۖ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِينَ ﴿٢٤١﴾

او شته طلاقې کړی شويو ښځو ته خرڅ ورکول په معروفې (نېکې طريقې) سره، چې مقرر لازم کړی شوی دی په پرهېزګارانو باندې.

تفسير: پخوا له دې نه د خرڅ يعنې د کاليو (جامو) ورکولو حکم د هغه طلاق په نسبت راغلی وو، چې نه «مهر» ټاکلی شوی وي، او نه مېړه لاس وروړي، اوس په دې آيت کې همدغه حکم د نورو لپاره هم صادر شو، مګر دومره فرق شته، چې ټولو طلاق ورکړی شويو لره کالي (جامې) ورکول يواځې مستحب دي، او کوم ضروري امر نه دی، او په لومړني صورت کې ضرور دی.

كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٢٤٢﴾

همداسې (لکه چې دا احکام يې بيان کړل) بيانوي الله تاسې ته آيتونه (احکام) خپل، لپاره ددې چې تاسې وپوهېږئ ! (او شرعي احکامو ته عقل متوجه کړئ) !.

تفسير: يعنې څرنګه چې الله تعالی دلته د نکاح، طلاق، او عدت احکام بيانوي، همدا راز خپل احکام او آيتونه واضح فرمايي، څو چې پرې وپوهېږئ !، او عمل پرې وکړئ.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٢٤٣﴾

آيا نه دې ليدلي تا (يعنې نه دی رسېدلی علم ستا ای عبرت آخيستونکيه) قصې د هغو کسانو ته چې وتلي وو له کورونو خپلو نه، حال دا چې دوی په زرګونو وو، (او وتلي وو) له وېرې د مرګه، پس وفرمايل دوی ته الله، چې مړه شئ (پس مړه شول) بيا يې ژوندي کړل دوی، بېشکه الله خامخا څښتن (خاوند) د فضل (مهرباني) دی په خلکو باندې، وليکن ډېر د خلکو شکر نه باسي (لکه چې ښايي، او پند ترې نه اخلي).

تفسير: دا ديوه پخواني امت قصه ده چې څو زره سړي له خپلو کورنيو سره له خپل هيواد څخه ددې له امله وتښتېدل، چې له دښمن ځنې وېرېدل، او له جنګ څخه يې خپل ځانونه ګوښه کول، يا له وبا ځنې وېرېدل، او په تقدير او توکل باندې يې يقين او باور نه وو، بيا کله چې دوی يوه ځای ته ورسېدل، د الله تعالی په حکم ټول سره مړه شول، او وروسته

د خپل نبي عليه السلام په دعا او غوښتنې سره بېرته ژوندي شول، چې له خپلو پخوانيو ګناهونو څخه توبه وکړئ، او وروسته له دې نه په ښو کارونو مشغول شئ، د دې پېښې قيصه ځکه دلته فرمايي، چې د کافرانو له «جهاد» يا د في سبيل الله له خرڅه د مال او د ځانو د مينې او محبت له سببه نه ښايي چې سرې مخ واړوي، او ودې پوهيږي چې که الله تعالى حکم وکړي، نو له هغه څخه د ژغورنې هيڅ يو صورت او چاره نشته، او که د ژوندون اراده وفرمايي، نو مړي په يوه سلګۍ کې بيا ژوندي کولی شي، د مرګ څخه د ژونديو ژغورنه کومه لويه خبره نه ده، نو بيا د هغه د حکم په تعميل کې له مرګ څخه وېرېدل، او له «جهاد» څخه ځان ايستل يا د افلاس له وېرې له خيراتونو او صدقاتو څخه لاس نيول او پر نورو باندې د احسان او فضل او عفوې ورونه تړل، برسېره په بد نيتي پوره ناپوهي او حماقت هم دی.

وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٤﴾ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ۚ وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٤٥﴾

او جنګ کوئ (ای مؤمنانو !) په لاره د الله کې (ددين د ترقۍ لپاره) او پوه شئ تاسې ! چې بېشکه الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (په ټول احوالو) دی. څوک دی هغه سړی چې قرض ورکوي الله لره قرض نېک (د زړه له اخلاصه د الله په لاره په صرفولو سره) نو زيات به کړي الله (ثواب د) قرض ده لره په زياتوالي ډېر، او الله تنګوي (رزق) او پراخوي (رزق) او هم (خاص) بيا به ده ته بيولي کيږئ ! (د اعمالو د جزا لپاره).

تفسير: يعني کله چې دا خبره ښکاره شوه چې: ستاسې ځان او مال د پاک الله په حکم کې دی، نو اوس تاسې ته ښايي چې د الله تعالى د دين لپاره د کافرانو سره جنګ وکړئ !، او وپوهيږئ چې پاک الله ټول شيان ګوري، او د بهانو کوونکو او د نورو ټولې خبرې اوري، او پرې پوهيږي، او ښايي چې د الله تعالى په لاره کې مال صرف کړئ !، او له تنګسې او فقيرۍ څخه هيڅ انديښنه ونه لرئ، او وپوهيږئ چې تنګسه او پراخي او نور شيان ټول د پاک الله په واک او اختيار کې دي، او د ټولو مرجع او ورتګ دده په لوري دی. «قرض حسنه» هغه پور (قرض) ته وايي چې له ورکولو څخه وروسته د هغه د بېرته اخيستلو زياته تقاضا ونه کړای شي، او پور (قرض) ورکوونکی په پوروړي باندې خپل منت او احسان کښېږدي، او عوض او بدل يې ونه غواړي، او هغه ته په سپکه سترګه ونه ګوري، او الله تعالى ته د مال ورکولو څخه دا مراد دی، چې سړی د «جهاد» او «غزا» په لاره کې خپل مال صرف کړي، او په اخلاص يې وښندي، يا يې محتاجانو ته ورکړي.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسَىٰ

آيا نه ده کتلي تا (يعني نه دی رسېدلی علم ستا ای عبرت اخيستونکيه په قيصې د !) ډلې له بني اسرائيلو وروسته له موسی نه.

تفسير: له دې قصې څخه د حق تعالى هغه قبض او بسط ښه ثابتيږي، چې ذکر يې پخوا له دې نه وشو يعنې فقير ته پاچايي ورکوي، او له پاچايانو څخه پاچايي اخلي، ضعيف قوي ګرځوي، او قوي ضعيف.

إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۖ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ أَلَّا تُقَاتِلُوا ۖ قَالُوا وَمَا لَنَا أَلَّا نُقَاتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا وَأَبْنَائِنَا ۖ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٢٤٦﴾

کله چې وويل دوی يوه نبي ته (چې راغلی وو) دوی ته چې: مقرر کړه مونږ ته يو پاچا چې جنګ وکړو (مونږ په تدبير او اتفاق د هغه) په لاره د الله کې، (نو) وويل (نبي): آيا نږدې ياست

چې (يعنې توقع شته) که فرض کړى شي په تاسو باندې جنګ؛ چې ونه کړئ جنګ (بلکه دا توقع شته)؟ وويل دوى: څه (مانع) دى مونږ لره چې وبه نه کړو جنګ په لاره د الله کې؟ حال دا چې په تحقيق سره ايستلي شوي يو مونږ له کورونو خپلو او له ځامنو خپلو (په ظلم سره او دا سبب د جنګ دى) نو کله چې فرض کړى شو په دوى باندې جنګ نو وګرځېدل دوى (ټول له جنګه) مګر (ونه ګرځېدل) لږ له دوى نه، او الله ښه عالم دى په ظالمانو باندې (نو جزا ورکوي دوى ته).

**تفسير:** له موسى عليه السلام څخه وروسته تر يوې مودې پورې د بني اسرائيلو چارې ښې وې، بيا کله چې د دوى نيتونه خراب شول، نو پر دوى باندې يو ظالم کافر پاچا چې جالوت نومېده، مسلط شو، دوى يې له ښاره وويستل، او د دوى کورونه يې لوټ کړل، او مريان يې وګرځول، بني اسرائيل وتښتېدل، او په بيت المقدس کې سره ټول شول، په دې وخت کې دوى له خپل نبي څخه وغوښتل، چې يو پاچا مونږ ته مقرر کړه! چې مونږ د هغه په ښوونه او ملګرتيا سره في سبيل الله «جهاد» وکړو.

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ اللَّهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوٓا۟ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ ٱلْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ أَحَقُّ بِٱلْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ ٱلْمَالِ ۚ قَالَ إِنَّ ٱللَّهَ ٱصْطَفَىٰهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُۥ بَسْطَةً فِى ٱلْعِلْمِ وَٱلْجِسْمِ ۖ وَٱللَّهُ يُؤْتِى مُلْكَهُۥ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۴۷﴾

او وويل دوى ته نبي د دوى، چې بېشکه الله په تحقيق سره مقرر کړى دى تاسې ته طالوت پاچا، وويل دوى (يعنې بني اسرائيلو) چې: څرنګه به وي ده لره (يعنې طالوت لره) پاچاهي پر مونږ باندې؟ حال دا چې مونږ ډېر مستحق يو په پاچايي سره له ده نه، او نه ده ورکړى شوې (ده ته) پراخي له مال څخه، وويل (نبي): چې بېشکه الله غوره کړى دى دا طالوت په تاسې باندې او زيات کړى يې دى هغه له جهته د پراخۍ په علم او (په) جسم کې، او الله ورکوي ملک (سلطنت) خپل هر چا ته چې اراده وکړي (د ورکولو يې)، او الله پراخ دى (احسان، فضل رحمت، د ده) ښه عالم دى، (په استعداد او مراتب د هر چا).

وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ إِنَّ ءَايَةَ مُلْكِهِۦٓ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلتَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ ءَالُ مُوسَىٰ وَءَالُ هَٰرُونَ تَحْمِلُهُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ ۚ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۲۴۸﴾

او وويل دوى ته (د يعقوب اولادې ته) نبي د دوى چې بېشکه علامه د پاچايۍ د ده (د طالوت) دا ده، چې رابه شي تاسې ته (يو) صندوق «چې وي به» په هغه کې اطمينان او ډاډ د زړه، له (طرفه د) رب ستاسې او باقي پاتې شوي له هغه شيانو چې پرېښي وو اولادې د موسى او اولادې د هارون، حال دا چې بار کړي به وي هغه (صندوق) پرښتو، بېشکه چې په دې (راتلو د دې صندوق) کې خامخا علامه ده (په پاچايۍ د طالوت) تاسې ته که چېرې يئ تاسې مؤمنان (يقين لرونکي – نو ويې منئ).

**تفسير:** په بني اسرائيلو کې له پخوا زمانو راهيسې يو صندوق موجود وو، چې د هغه په منځ کې به د موسى او هارون او نورو انبياوو عليهم السلام ځينې ترکه او پاتې شوي شيان وو، کله چې جالوت برى وموند، نو دا صندوق يې هم له دوى څخه واخيست، خو څرنګه چې د الله تعالى اراده داسې وه، چې هغه صندوق بېرته بني اسرائيلو ته ورکړي، نو

داسې وشوه چې دا صندوق ملائکو واخيست، او آسمان ته يې پورته کړو، او بېرته يې راکوز کړ، او د طالوت په مخ کې يې په داسې حال کې کېښود، چې بني اسرائيلو ورته کتل، بني اسرائيلو ددې علامو په ليدلو؛ د طالوت په پاچايۍ باندې باور وکړ، او په نتيجه کې طالوت د جالوت پر لښکر باندې سره له خپل فوځه حمله او يرغل ور ووړ، خو په دې وخت کې موسم خورا ګرم وو، او تودوخه (ګرمي) ډېره زياته وه.

فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُم بِنَهَرٍ فَمَن شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي وَمَن لَّمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ ۚ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَاقُو اللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ ﴿٢٤٩﴾

نو کله چې راووت طالوت سره د لښکرو (نو) وويل طالوت چې: بېشکه الله ازمويونکی ستاسې دی په يوه وياله (نهر) سره، نو هر هغه څوک چې (اوبه) وڅښي له هغې ويالې (نهر) څخه؛ نو نه دی له (تابعانو) زما، او هر هغه څوک چې ونه څکي دا (اوبه) نو بېشکه دی له (تابعانو) زما دی، مګر (خو له تابعانو څما دي) هغه څوک چې اخلي يو ورغوی اوبه په لاس خپل، نو ويې څښلې (دوی اوبه) له هغې (ويالې، ټولو) مګر (ونه څښلې زيات له يوه ورغوي نه) لږو له دوی نه، نو کله چې تېر شو له هغه ويالې نه دی (يعني طالوت) او هغه کسان چې ايمان لرونکي وو (تېر شول) له ده سره وويل دوی (متخلفينو) (وروستو پاتې کېدونکيو) چې: نشته طاقت موږ لره نن ورځ له جالوت سره او لښکرو د ده سره (د جنګ کولو)، وويل هغو کسانو چې يقين يې وو (په دې) چې بېشکه دوی ورتلونکي دي الله ته: ډېر (کرته) له لږو ډلو (د مؤمنانو) غلبه کړې وه (دغې لږې مؤمني ډلې) په ډلې ډېرې (د کفارو سرکښانو) په اذن (حکم) د الله سره، او الله سره له صابرانو دی (په نصرت او اثابت).

تفسير: خلق له هوسه، د طالوت سره د تللو او حرکت په نيت ټول سره تيار شول، بيا طالوت وغوښتل، چې دوی وازمويي، په لومړي مزل کې اوبه نه وې، خو کله چې په دوهم مزل د اوبو ويالې ته ورسېدل، نو طالوت حکم وکړ: «هغه ځلمي مجاهد چې له يوه ورغوي (لپې) څخه زياتې اوبه وڅښي، له ما سره دی نه درومي !» په نتيجه کې له دوی څخه يواځې «۳۱۳» تنه ځلميان پاتې شول، او نورو ډېرې اوبه وڅښلې او جلا شول، هغه ځلميان چې له يوه ورغوي څخه يې زياتې اوبه نه وې څښلې، د هغوی تندې بيخي ماتې شوې، خو د هغو کسانو چې زياتې اوبه يې څښلې وې، د هغو تندې لا پسې زياتېدې، او د وړاندې تللو توان يې نه درلود (لرلو).

وَلَمَّا بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالُوا رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٢٥٠﴾ فَهَزَمُوهُم بِإِذْنِ اللَّهِ وَقَتَلَ دَاوُودُ جَالُوتَ وَآتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهُ مِمَّا يَشَاءُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّفَسَدَتِ الْأَرْضُ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْعَالَمِينَ ﴿٢٥١﴾

او کله چې راووتل (مخامخ شول) دوی لپاره د (جنګ) د جالوت او دلښکرو د ده، نو وويل دوی (يعني مؤمنانو): ای څمونږ ربه ! نازل (را توی) کړه پر مونږ صبر، او کلک کړه قدمونه څمونږ (په جنګ کې) او مرسته وکړه له مونږ سره ! په قوم کافرانو !. مات کړل مؤمنانو دوی (يعني کافران) په اذن (حکم) د الله سره او مړ کړ داود جالوت لره، او ورکړ ده ته (يعني داود ته) الله سلطنت او حکمت (نبوت) او ويې ښودل ده ته له هغو شيانو چې اراده يې کوله، او که چېرې

نه وي دفع (منع) کول د الله خلقو لره، ځينو د دوی لره، په ځينو نورو سره، (نو) خامخا به خرابه شوې وه ځمکه (هيواد په ظلم سره)، وليکن الله څښتن (خاوند) د فضل (احسان) دی په خلقو باندې (نو ځينې په ځينو نورو سره له فساد څخه منع کوي).

تفسير: داود عليه السلام له دې پخوا يو عادي سړی وو، کله چې هغه د طالوت په لښکر کې د جالوت مخې ته د غزا لپاره لاړ، او د جالوت په وژنه بريالی شو، نو په دې سره د جالوت لښکر ماته وخوړه، او الله تعالی داود عليه السلام ته نبوت، پاچاهي، د زغرو جوړول، او د مرغانو په خبرو باندې پوهه ورکړه.

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ؕ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

دا چې تېر شول آيتونه (دلائل) د الله دي چې مونږ يې لولو پر تا باندې (ای محمده !) په حقه سره، او بېشکه ته چې يې (ای محمده !) هرو مرو (خامخا) (ځمونږ) له مرسلانو څخه يې.

تفسير: دا دبني اسرائيلو قصه وه، چې تېره شوه، يعنې د زرهاوو سړيو وتل، او د هغوی ناڅاپه مړه کېدل او ژوندي کېدل، او دطالوت پاچا کېدل، دا ټول د الله تعالی د قدرت علامې دي، چې تاته اورولی کيږي، او ته ای محمده ! «صلی الله عليه وسلم» بېشکه د الله تعالی له رسولانو (استازو) څخه يې، يعنې همغسې چې پخوا له تا څخه مرسلان مبعوث شوي دي، ته هم د هغوی په شان په حقه او يقين مرسَل يې، چې د پخوانيو زمانو قصې په خورا (ډېر) ښه ډول بيانوې !، حال دا چې دا خبرې تا نه په کوم کتاب کې ليدلې دي !، او نه دې له چا څخه اورېدلې دي.

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ؕ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ

دا ټول رسولان (چې له آدم تر محمده پورې ياد شول) فضيلت ورکړی دی مونږ ځينې د دوی ته پر ځينو نورو، ځينې له دوی څخه هغه دي چې خبرې کړي دي الله (له دوی سره چې آدم، موسی، او محمد دي) او پورته کړي يې دي ځينو د دوی ته درجې (لکه محمد) او ورکړی دی مونږ عيسی ځوی د مريمې ته ښکاره معجزې، او قوي کړی دی مونږ هغه په روح القدس (جبريل) سره.

تفسير: دې رسولانو ته چې ذکر يې وشو، مونږ فضيلت ورکړی دی؛ ځينو ته پر ځينو نورو باندې (د رسالت نه برسېره په نورو صفاتو سره)، ځنې په دوی کې داسې دي چې الله جل جلاله له هغوی سره کلام کړی دی، لکه آدم، موسی او محمد عليهم السلام، ځينې د ګرد جهان لپاره ټاکلی (مقرر) شوي دي، لکه ځمونږ محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم چې په دغه شرف سره مخصوص او مبعوث شوی دی، او د ځينو درجې يې لوړې کړي دي، لکه چې ځينې د يوه کلي او ځينې د يو ښار، او ځينې د يوه قوم لپاره مقرر شوي دي، او عيسی عليه السلام ته ښکاره معجزې ورعنايت شوې دي، لکه: مړی ژوندی کول، د أکمهو (مورزاد ړندو) أبرصو (برګو) او نورو روغول، او مرسته ورکړه مونږ هغه ته په پاک روح سره يعنې جبريل عليه السلام مو د هغه د مرستې لپاره ولېږه.

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۫ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿۲۵۳﴾

او که اراده کړې وی الله (د ټولو خلقو د هدايت) نو نه به وو کړی جنګ (او اختلاف) هغو کسانو چې وروسته له دې رسولانو څخه وو (د دوی له امتونو څخه) وروسته له هغه څخه

چې راغلي دوی ته ښکاره معجزې، ولیکن دوی اختلاف (او جګړې) سره وکړې، نو ځینې له دوی څخه هغه څوک دي چې ثابت پاتې شوي دي په ایمان، او ځینې له دوی څخه هغه څوک دي، چې کافران شول، او که اراده کړي وی الله (د دوی د هدایت) نو دوی به نه وو کړی (مخالفت او) مجادله، ولیکن الله کوي هغه کار چې اراده لري (د چا د هدایت او ضلالت).

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ

ای هغو کسانو ! چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو) خرچ کړئ (په زکات یا په جهاد یا په نورو واجبو صدقاتو کې) ځینې له هغو مالونو څخه چې درکړي دي مونږ تاسې ته پخوا د راتلو د هغې ورځې نه چې نه پېردول (اخیستل) او نه پلورل (خرڅول) په کې شته (چې سړی مال پیدا کړي بیا پرې ځان له عذابه خلاص کړي)، او نه دوستي او نه شفاعت (او نه بې د الله د اذن او اجازې نه سپارښت پکې شته).

تفسیر: یعنې د عمل کولو وخت همدا دی په آخرت کې نه عمل پلورل (خرڅول) او نه پېردول (اخیستل) کیږي، او نه په خپلوی، دوستی، او آشنایی سره په لاس راځي، او نه په سپارښت سره څوک ځان خلاصولی شي، تر څو یې چې پاک الله پرې نه ږدي، چې د هغه نیوونکی دی، یا د ده په نسبت د شفاعت امر ونه کړي.

وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٥٤﴾

او کافران هم دوی دي ظالمان (نو ای مؤمنانو تاسې د دوی په شان مه کیږئ !).

تفسیر: یعنې په خپله کفارو په خپلو ځانونو باندې ظلم وکړ، چې د هغه له شامته، په سختو عذابونو ککړ شول، چې په آخرت کې نه د چا دوستي او خپلوي دوی ته ګټه او نفع رسولی شي، او نه یې سپارښت په ښه ورتلی شي.

اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ

الله (چې دی)؛ نشته هیڅوک لایق د عبادت مګر هم دی دی، چې تل ژوندی، په یو حال باقي، قایم، کامل، تدبیر والا دی.

تفسیر: له لومړني آیت څخه د حق تعالی عظمت او شان هم معلومیږي، وروسته له هغه دا آیت نازل شو، چې د ذات توحید، او د هغه تقدس، جلال، او د عظمت غایت په ډېر وضاحت سره په کې بیان شوی دی، ددې آیت لقب «آیة الکرسي» دی، چې په مبارک حدیث کې د کتاب الله خورا (ډېر) لوی آیت ښودل شوی دی، او ډېر فضیلت او ثواب یې منقول دی، اصلي خبره دا ده چې حق تعالی پخپل کلام کې درې ډوله مضامین ځای په ځای بیان کړي دي:

(۱) د توحید او صفاتو علم.

(۲) د احکامو علم.

(۳) د قصصو او حکایاتو علم، چې له دغه علم څخه هم د توحید او صفاتو تقریر او تایید مقصو دی، یا د علم الأحکام تاکید او ضرورت مطلوب دی، چې یو د بل لپاره لکه علت او علامت داسې دي، د حق تعالی صفات د شرعیه وو احکامو لپاره منشأ او اصل دی، او شرعیه احکام د الله جل جلاله صفاتو ته لکه ثمرات او فروع داسې دي، «آیة الکرسي» د توحید او صفاتو په موضوع کې یو ممتاز حیثیت لري، او په دې سره یې د ګردو

(ټولو) حکمونو اساس او ريښې (رېښې) په زړونو کې داسې ټينګې او مضبوطې کړې، چې که څوک يې د ايستلو کوښښ وکړي، ايستلی يې نه شي.

لَا تَأْخُذُهُۥ سِنَةٌ وَلَا نَوْمٌ ۚ لَّهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِى ٱلْأَرْضِ ۗ مَن ذَا ٱلَّذِى يَشْفَعُ عِندَهُۥٓ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ ۚ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۖ وَلَا يُحِيطُونَ بِشَىْءٍ مِّنْ عِلْمِهِۦٓ إِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ ۖ وَلَا يَـُٔودُهُۥ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ ٱلْعَلِىُّ ٱلْعَظِيمُ ﴿۲۵۵﴾

نه نيسي ده لره پرکالي د خوب (يعنې نه راځي په الله د خوب پرکالي او پرېشاني)، او نه په خپله خوب، الله لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې ملکاً، خلقاً، وعبيداً)، څوک به وي هغه چې سپارښت (سفارش) وکړي په نزد د ده؟ (هيڅوک يې نشي کولی !) مګر (خو کولی شي) په اذن (حکم) د ده سره، عالم دی په هغو شيانو چې په مخ د مخلوقاتو کې دي (د دنيا له امورو) او په هغو شيانو چې وروسته له دوی دي (د عقبی له امورو) او نه شي احاطه کولی دوی په هيڅ له معلوماتو د ده، مګر (احاطه کولی شي) په هغه شي چې اراده وکړي (الله د هغه شي د معلومولو دوی لره)، پراخه ده کرسي د ده په ټولو اسمانونو او ځمکې باندې، او نه ستومانه کوي ده لره ساتنه د اسمانونو او ځمکې، او هم دی (الله) دی (له ګردو څنې) خورا (ډېر) پورته، خورا (ډېر) لوی دی.

**تفسير:** په دې آيت کې د پاک الله د ذات د توحيد او د صفاتو د عظمت بيان شوی دی، چې الله يو او تل دی، او هيڅوک د هغه شريک نه دي، د ګردو مخلوقاتو موجد او مالک همدی دی، له ګردو (ټولو) نقصاناتو او هر راز تبدلاتو او فتورو څخه پاک او منزه دی، په ګردو شيانو باندې ددې علم کامل او په ټولو باندې پوره قدرت لري، خورا لوړه درجه او عظمت ورته حاصليږي، هيچا ته دومره مجال نشته، او نه حق لري چې بې د ده له حکمه څخه د بل سپارښت وکړی شي، او هيڅ يو داسې کار او امر نشته چې د هغه کول ده ته کومه سختي او مشکلات ولري، په ټولو شيانو لوړ او اوچت او لوی دی، د الله تعالی د کبرياء او لويي په مقابل کې ګرد (ټول) حقير دي، له دې څخه دوه په زړه پورې مضمونونه څرګنديږي:

(۱) دحق تعالی ربوبيت او حکومت او ځمونږ او د نورو مخلوقاتو محکوميت او عبوديت، چې د هغه له مخې د حق تعالی ګرد ذکر شوي، او نا ذکر شوي احکام بې له څرنګه، او څه ويلو څخه واجب التصديق او واجب التعميل کېدل، او د هغه په احکامو کې د هيڅ يو راز شک او شبهې اعتبار نه کول معلوم شول، او يواځې دداسې کمالي صفتونو خاوند ددې مستحق دی چې يواځې د همغه عبادت او بندګي وشي.

(۲) کله چې له پخوانيو ذکر شوو ډېرو عباداتو او معاملاتو څخه او د نعمتونو او عذابونو له ليدلو څخه چاته داسې شبهه پيدا کېده، چې د هر سړي دومره زيات معاملات او عبادات دي، چې هغه ګرد دومره زياتيږي، چې د حساب او کتاب او انضباط لاندې د هغو راتلل محال، بلکه نا ممکن په نظر راځي، بيا د هغو په مقابل کې هر يوه ته ثواب او عقاب ورکول، له عقله وتلي او نا ممکنه په نظر راځي، نو په دې آيت کې حق سبحانه وتعالی څو داسې خپل مقدس صفات بيان کړل، چې هغه ګرد خيالات او چرتونه په اسانۍ لرې شو، يعنې د هغه علم او قدرت داسې کامل دی، چې هيڅ يو شی داسې نه دی، چې د هغه څخه بهر او خارج وي، د هغه کثير الصفات ذات علم او قدرت چې دومره لوړ او غير متناهي او تل يو شان قائم او باقي دی،

نو هغه ته د جهان د ګردو جزئياتو انضباط، او دهغوی د ثواب اوعقاب ورکول کوم سخت او ګران کار نه دی، بلکه ډېر اسان دی.

﴿لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ﴾

نشته هيڅ زور په (منلو) د دين کې، په تحقيق سره ښکاره شوې ده سمه لار (د ايمان) له ګمراهی (کفر) څخه.

تفسير: کله چې د توحيد ګرد دلائل په ښه شان سره بيان شول، چې له هغو څخه هيڅ يو کافر ته هم هيڅ يو عذر پاتې نه شو، نو اوس په زور او زياتي سره د هيڅا مسلمانولو ته حاجت پاتې نه شو، ښايي چې عاقلان خپله وپوهيږي، او په شريعت کې هم داسې حکم نشته، چې په زور سره څوک مسلمانی ته اړ (مجبور) کړی شي: د ﴿أَفَأَنتَ تُكۡرِهُ ٱلنَّاسَ حَتَّىٰ يَكُونُواْ مُؤۡمِنِينَ﴾ [سورت يونس ۹۹ آيت]، د نص په اساس هغه څوک چې «جزيه» مني، د هغه ځان او مال محفوظ او ساتلی پاتې کيږي.

ځينې وايي چې: «دا اخبار دی په معنی د نهي، يعنې په زور او زياتي سره هيڅوک دين ته مه اړ (مجبور) کوئ !، دغه نهيې يا خو عامه او د «التوبه» د (۱۰) رکوع په (۷۳) آيت سره چې ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ جَٰهِدِ ٱلۡكُفَّارَ وَٱلۡمُنَٰفِقِينَ وَٱغۡلُظۡ عَلَيۡهِمۡ﴾ دی، منسوخه ده، يا خو تر اهل کتابو پورې خاصه ده، چې په «جزيه» ورکولو سره خپل ځان ساتلی شي، نو په دغه تقدير سره به نه وي منسوخ».

﴿فَمَن يَكۡفُرۡ بِٱلطَّٰغُوتِ وَيُؤۡمِنۢ بِٱللَّهِ فَقَدِ ٱسۡتَمۡسَكَ بِٱلۡعُرۡوَةِ ٱلۡوُثۡقَىٰ لَا ٱنفِصَامَ لَهَاۗ وَٱللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝٢٥٦﴾

پس هر څوک چې کافر (منکر) شو له (عبادت د شيطان او) بتانو، او ايمان يې راوړو په (وحدانيت) د الله باندې، نو په تحقيق سره يې ټينګه نيولې ده کړۍ کلکه چې له سره نشته پرې کېدل هغې لره، او الله ښه اورېدونکی (د ګردو اقوالو) ښه عالم دی (پر ټولو احوالو).

تفسير: يعنې کله چې هدايت او ضلالت په منځ کې تميز وشو، نو اوس څوک چې له ضلالت څخه مخ اړوي، او هدايت خوښوي نو هغه داسې يوه ټينګه او مضبوطه کړۍ نيولې ده، چې د هغې د شکېدلو او خوشې کېدلو هيڅ خوف او وېره نشته، او حق تعالی ګرد (ټول) ښکاره اقوال ښه اوري، او په ټولو پټو کارونو او نيتونو او د زړونو په خبرو او احوالو باندې ډېر ښه عالم دی، او له ده څخه د هيڅا خيانت او بد نيتي پټې نه پاتې کيږي.

﴿ٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِۖ وَٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ أَوۡلِيَآؤُهُمُ ٱلطَّٰغُوتُ يُخۡرِجُونَهُم مِّنَ ٱلنُّورِ إِلَى ٱلظُّلُمَٰتِۗ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ۝٢٥٧ أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِي حَآجَّ إِبۡرَٰهِـۧمَ فِي رَبِّهِۦٓ أَنۡ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ٱلۡمُلۡكَ إِذۡ قَالَ إِبۡرَٰهِـۧمُ رَبِّيَ ٱلَّذِي يُحۡيِۦ وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا۠ أُحۡيِۦ وَأُمِيتُۖ قَالَ إِبۡرَٰهِـۧمُ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَأۡتِي بِٱلشَّمۡسِ مِنَ ٱلۡمَشۡرِقِ فَأۡتِ بِهَا مِنَ ٱلۡمَغۡرِبِ فَبُهِتَ ٱلَّذِي كَفَرَۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٢٥٨﴾

الله دوست (مددګار) دی د هغو کسانو چې مؤمنان دي، چې باسي دوی له تيارو (د کفر او ګمراهی نه) د رڼا (د ايمان او هدايت) لوري ته، او هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي، دوستان د دوی شيطانان دي، چې باسي دوی له رڼا (د فطري ايمان او هدايت نه) د تيارو (د کفر او ګمراهی)

لورې ته دغه کسان (چې فطري ایمان یې په عملي کفر سره بدل کړی دی) صاحبان د اور (د دوزخ) دي، هم دوی په دې اور کې تل پاتې کېدونکي دي، آیا نه دی لیدلی تا (یعنې ای محمده ! ستا علم نه دی رسېدلی قصې د) هغه سړي (نمرود) ته چې جګړه (حجت بازي) یې کړې وه ابراهیم سره په (حق د) رب د ده کې، له دې جهته چې ورکړی وو ده ته الله ملک (سلطنت)، کله چې وویل ابراهیم: رب زما هغه ذات دی چې ژوندي کول کوي او مړه کول کوي، وویل (نمرود): چې زه (هم) ژوندي کول کوم (واجب القتل په عفوې سره) او مړ کول کوم (بېګناه په ظلم سره)، وویل ابراهیم: «نو بېشکه الله راولي لمر له (لورې د) مشرقه، نو ته (ای نمروده !) راوله هغه (لمر) له (لورې د) مغربه !»، نو حیران (او شرمنده) شو هغه څوک چې کافر شوی وو (یعنې نمرود)، او الله نه ښیي (د خیر سمه صافه لاره) قوم ظالمانو ته (په سبب د ظلم د دوی پر خپلو نفسونو).

**تفسیر:** په لومړي آیت کې د مؤمنانو او د کافرانو او د اسلام د نور او د کفر د ظلمت ذکر وو، اوس د هغو د تایید لپاره څو مثالونه راوړي، په لومړي مثال کې: د «نمرود» پاچا ذکر دی، چې ده د خپلې شهنشاهۍ په غرور خلق دې ته مجبورول چې سجدې ورته وکړي، کله چې ابراهیم علیه السلام له ده سره مخامخ شو، ابراهیم علیه السلام وویل چې: «زما رب هغه ذات دی چې ژوندي کول او مړه کول د ده په واک (اختیار) کې دي»، «نمرود» وویل چې: «دوه تنه بندیان چې یو واجب القتل او بل بېګناه وي ژر را حاضر کړئ !» نو سمدلاسه «نمرود» حکم وکړ، چې: «واجب القتل بندي دې خوشې (آزاد) شي ! او بې ګناه بندي دې ووژل (قتل) شي !» او په پای (آخر) کې یې ابراهیم علیه السلام ته وویل: «ودې لیدل، چې زه هم هر سړی چې وغواړم؛ وژنم یې، او هر څوک چې وغواړم؛ ژوندی کوم یې»، دلته ابراهیم علیه السلام د لمر دلیل ور وړاندې کړ، او هغه مغرور احمق یې ساکت او بې ځوابه کړ، خو هدایت یې په برخه نه شو، یعنې سره د بې ځوابه پاتې کېدو د ابراهیم علیه السلام ارشاد ته یې غوږ کښېنښود، او ایمان یې رانه وړ، یا داسې ووایئ چې د ابراهیم علیه السلام ددویم سوال ځواب یې ونشو ویلی، حال دا چې همغسې لکه نمرود چې د ده اول سوال ځواب ورکړی وو، د هم داسې ځواب ورکولو امکان دلته هم وو، چې داسې یې ویلي وای: (چې د مشرق نه یې زه راخېژوم، ستا معبود دې له مغربه راوخېژوي).

أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا قَالَ أَنَّىٰ يُحْيِي هَٰذِهِ اللَّهُ بَعْدَ مَوْتِهَا ۖ فَأَمَاتَهُ اللَّهُ مِائَةَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهُ ۖ

یا (آیا ستا علم نه دی رسېدلی قصې د) هغه سړي (عُزَیر) ته چې تېر شو په یوې قریې او هغه (قریه) پرېوتلې وه (دیوالونه یې) پر بامو د دوی باندې، (نو عزیر) وویل: څرنګه به (بیا ودانه او) ژوندی کړي الله دا (قریه یا یې خلق) وروسته له (ورانېدا او) مړ کېدو (د اهل) دهغې؟ نو مړ کړ دی الله (او مړ یې پرېښود) سل کاله، بیا یې پورته (ژوندی) کړ دې.

**تفسیر:** هغه سړی چې عُزَیر علیه السلام وو، چې په لاره کې په یوه وران ښار باندې تېر شو، چې د هغه ګرد دیوالونه برسېره پر چتونو باندې لویدلي وو، نو د ده په زړه کې دا خبره تېره شوه، چې د دې ښار ګرد اوسېدونکي مړه شوي دي، نو دوی به څرنګه د حق تعالی له لورې بیا ژوندي شي؟ او دا ښار به بیاڅرنګه ودان شي؟ دلته د ده روح قبض او سا یې الله تعالی ته وکښله، او خر یې هم مړ شو، سل کاله همداسې مړ پاتې شو، عُزَیر علیه السلام وروسته له سلو کلونو بیا ژوندی کړ شو، ګوري چې د ده د خوړلو او څښلو شیان همغسې صاف، پاک، او تازه ورته پراته دي، او د ده خر چې مړ شوی وو، هډوکې یې ګرد سره وراسته شوي، او کوته پراته وو، اوس همغه هډوکي د ده تر سترګو لاندې بیا ژوندي شول،

قَالَ كَمْ لَبِثْتَ ۖ قَالَ لَبِثْتُ يَوْمًا أَوْ بَعْضَ يَوْمٍ ۖ

وویل (الله عُزیر ته چې): «څومره ځنډ (تاخیر) کړی دی تا (دلته)»، وویل (عُزیر): «ځنډ (تاخیر) مې کړی دی یوه ورځ، یا یوه برخه د ورځې».

تفسیر: کله چې عُزیر علیه السلام مړ کېده، لمر لږ څه هسک (اوچت) راغلی وو، او کله چې بیا ژوندی شو، لا ماښام شوی نه وو، نو لمړی یې داسې خیال کړی وو، که زه دلته پرون ویده شوی یم، خو یوه ورځ، او که همدا نن ویده شوی یم، خو لا پوره یوه ورځ هم نه ده تېره.

قَالَ بَل لَّبِثْتَ مِائَةَ عَامٍ فَانظُرْ إِلَىٰ طَعَامِكَ وَشَرَابِكَ لَمْ يَتَسَنَّهْ ۖ وَانظُرْ إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ ۖ وَانظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا ۚ

وویل (الله داسې نه ده لکه چې ته وایې): بلکه ځنډ (تاخیر) کړی دی تا (دلته) سل کاله، نو وګوره خوړو خپلو ته، او (څیانو) د څښلو خپلو ته، چې هیڅ نه دي خراب شوي (سره له تېرېدلو د سلو کلونو)، او وګوره خره ته دې (چې هډوکي یې څرنګه تک سپین ځلیږي)، او لپاره ددې چې مونږ وګرځوو تا دلیل (د قدرت) لپاره د خلقو (په بیا ژوندي کېدو سره) او وګوره طرف د هډوکو (د خره خپل) ته چې څرنګه راخوځوو (مونږ) هغه، بیا ورآغوندو هغوی ته غوښه.

تفسیر: عُزیر علیه السلام په مخ کې هغه ګرد (ټول) هډوکي د بدن له ترکیب سره سم ټول کړل شول، بیا هغوی باندې غوښې زرغونې شوې، او پوستکي پرې وغوړېدل، بیا د الله تعالی په قدرت په هغه کې سا ننوتله، او له خپل ځای څخه پاڅېده! او ودرېده، او ویې هنګل (اواز یې وکړو).

فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٥٩﴾

نو کله چې ور ښکاره شو ده ته (دا حال په مشاهده سره نو) وویل (عُزیر چې اوس) پوهېږم (په مشاهده سره هم) چې بېشکه الله په هر شي باندې ښه قادر دی.

تفسیر: کله چې عزیر علیه السلام دا ګردې (ټولې) پېښې په خپلو سترګو ولیدې، نو ویې ویل: چې لا مې ښه باور او یقین راغلی چې پاک الله په هر شي باندې ښه قادر دی، یعني په دې خبره باندې خو پخوا له دې نه هم معتقد وم، چې د مړي ژوندي کول الله جل جلاله ته ډېر آسان کار دی، خو اوس مې د ده دا قدرت په خپلو سترګو ولید، «دا یې مطلب نه دی چې پخوا یې په یقین کې څه کمی وو، هو! داسې ننداره یې په خپلو سترګو نه وه لیدلې».

وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ۖ

او (یاد کړه ای محمده!) هغه وخت چې وویل ابراهیم: ای ربه زما وښیه ماته چې څرنګه ژوندي کوې ته مړي؟ وویل (الله): آیا ستا لا باور نشته (په ژوندي کولو د مړو؟ بیا) وویل (ابراهیم): چې هو! (باور مې شته) ولیکن (غواړم دا) د دې لپاره چې مطمئن شي زړه زما.

تفسیر: لنډه یې دا چې یقین یې پوره وو، خو یواځې د مشاهدې او د عین الیقین غوښتونکی وو، چې هغه خامخا په کتلو باندې موقوف دی.

قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا

وويل (الله): نو ونيسه ! څلور له مرغانو نه، پس رانږدې کړه ! دوی ځان خپل ته، (بيا يې حلال کړه !) بيا يې کېږده ! په هر يوه غره باندې له دوی ځني يوه يوه برخه، بيا راوبوله ! (اې ابراهيمه !) دوی (يعنې دغه مرغان) رابه شي دوی تاته(اې ابراهيمه !) په منډو.

تفسير: د پاک الله له ارشاد سره سم ابراهيم عليه السلام څلور مرغان واخيستل، او څلور واړه يې له خپله ځانه سره آموخته کړل، چې په بللو باندې به هر يو په تلوار سره ورته راته، او د ده معرفت او پيژندګلوي هم له هغو سره ډېره زياته شوه، بيا يې د پاک الله په امر سره دا څلور واړه مرغان حلال کړل، او په څلورو غرونو يې د دې مرغانو اجزاء سره ووېشلې، او دې په خپله د دې څلورو واړو غرونو په منځ کې ودرېده، او يوه مرغه ته يې غږ وکړ، نو د هغه سر د يوه غره له سره والوت، او په هوا شو، د هغه پښې، ځانګونه، او تنې هم ورسره والوتې، او په هوا کې سره ونښتلې، او روغ رمټ بېرته په ځمکه کې کيناست، او د ابراهيم عليه السلام مخ ته په خپلو پښو راغی، همداسې د دويم، درېم، او څلورم مرغه اجزاء پرله پسې الوتلې، او په هوا کې سره پيوند کېدلې، او د خپلو جثو له جوړېدولو وروسته د خليل الله ابراهيم په مخ کې په خپلو پښو راتلل، يا دا چې ځان ته يې رانژدې کړه !، او حلال يې کړه، او غوښې، هډوکي، بڼې، او پښې يې ټول سره وټکوه، او سرونه يې له ځان سره وساته !، دا ګډه غوښه يې سره کلوله کلوله کړه !، او په څلورو غرونو باندې يې کېږده، بيا ورنارې کړه ! نو رابه شي دوی تاته بېرته په تلوار سره.

وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾

او پوه شه ! (اې ابراهيمه !) چې بېشکه الله ډېر غالب دی(د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا دی (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

مَّثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ أَنبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِي كُلِّ سُنبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ۗ وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَن يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦١﴾

مثال (صفت د نفقې او ورکړې) د هغو کسانو چې صرفوي مالونه خپل په لاره د الله (په جهاد او نورو عبادتونو) کې په مثل د يوې دانې (د تخم) دی چې زرغونه کړي دا (دانه) اوه وږي، په هر يوه وږي کې سل (سل) دانې وي، او الله زياتوی (اجر) لپاره د هغه چا چې اراده وکړي (د اجر دزياتولو)، او الله پراخ دی (احسان، فضل، او رحمت دده)، ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسير: يعنې د الله تعالی په لاره کې د لږ مال ثواب هم ډېر دی، لکه چې له يوې دانې ځنې اوه سوه دانې پيدا کيږي، او الله تعالی چې هر چا ته اراده وفرمايي لا يې پسې زياتوي، او له اوو سوو ځنې اوه زره او له دې نه يې هم زياتوي، او الله جل جلاله لوی مغفرت کوونکی، او د هر صرف کوونکي په نيت، او د هغه د صرف شوي مال په مقدار، او د مال په کيفيت او په نورو شيانو باندې ښه عالم دی، او د هر يوه سره مناسبه معامله کوي.

الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُونَ مَا أَنفَقُوا مَنًّا وَلَا أَذًى ۙ لَّهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٦٢﴾

هغه کسان چې صرفوي مالونه خپل په لاره د الله (په جهاد او نورو عبادتونو) کې بيا نه وروپسې کوي (دوی) په هغه شي پسې چې خيرات کړی يې دوي (بارول د) احسان او نه (رسونه د) ضرر،

(شته) لپاره د دوی اجر (د نفقې ثواب) د دوی، په نزد د رب د دوی، او نه به وي هيڅ ډول وېره په دوی باندې او نه به دوی (هيڅکله) غمجن کيږي (د ثواب په نقصان سره).

تفسير: هغه خلق چې د الله تعالى په لاره کې مال مصرفوي، او دهغه صرف شوي مال په نسبت نه په ژبه چا باندې احسان ږدي، او نه چاته د هغه په مقابل کې په پيغور ورکولو او خدمت اخيستلو، او تحقير کولو، زحمت پېښوي (يعنې هيڅ ډول قولي، يا فعلي رنځ او آزار نه ور رسوي)، نو د هغوی لپاره کامل ثواب شته دی، او نه د ثواب له کمېدلو څخه به دوی ته څه وېره او انديښنه نه وي، او نه د ثواب له نقصانه غمجن کيږي.

قَوۡلٌ مَّعۡرُوۡفٌ وَّمَغۡفِرَةٌ خَيۡرٌ مِّنۡ صَدَقَةٍ يَّتۡبَعُهَآ اَذًى ؕ وَاللّٰهُ غَنِىٌّ حَلِيۡمٌ ﴿۲۶۳﴾

خبره معروفه نېکه(خوږه پسته فقير ته) او عفوه (ده ته که الحاح يا شور وکړي) ډېره ښه ده له خيراته چې په هغه پسې وي ضرر (رسونه په منت يا په پيغور د سوال سره)، او الله غني دی (بې پروا له هر چا او له هر شي) نهايت تحمل والا (د عذاب په وروسته والي دپښېمانتيا لپاره).

تفسير: يعنې سوالګر ته په ورو ځواب ورکول، او د هغه له ټينګار او بدخويي ځنې تېرېدل له هغه خيرات څخه ښه دی چې ځو ځلې يې سپک کړي، او ويې شرموي، يا پيغور ورکړي، يا احسان پرې کېږدي، او الله تعالى «غني» دی، چې د هيچا (انفاق ته چې په من او اذی وي او) مال ته څه حاجت او اړه (احتياج) نه لري، هغه خيراتونه او «صدقې» چې تاسې يې د هغه په لاره کې ورکوئ، وپوهېږئ چې خپلو ځانونو ته يې ورکوئ، او «حليم» دی چې په هسې ربړولو (تکليف ورکولو) باندې د عذاب په مقررولواو لېږلو کې تلوار نه کوي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تُبۡطِلُوۡا صَدَقٰتِكُمۡ بِالۡمَنِّ وَالۡاَذٰى ۙ كَالَّذِىۡ يُنۡفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ وَالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ ؕ

ای هغو کسانو ! چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) مه باطلوئ تاسې خيراتونه خپل (مه ضايع کوئ ثوابونه يې) په احسان بارولو او ايذا (او ضرر رسولو) سره په شان (د ابطال د ثواب او د انفاق) د هغه (سړي) چې صرفوي مال خپل لپاره د ښودنې د خلقو او ايمان نه لري په الله، او په ورځې آخرې باندې (چې قيامت دی).

تفسير: دا ارشاد چې هغه په الله تعالى او د قيامت په ورځې يقين نه لري؛ نو دا د «صدقې» د ابطال لپاره قيد او شرط نه دی، څکه چې «صدقه» خو يواځې له رياء ځنې باطله کيدی شي، اګر که صرف کوونکی يې مؤمن هم وي، مګر دا قيد يې يواځې د دې لپاره زيات کړ، چې معلومه شي، چې رياء کاري د مؤمن له شانه لرې ده، بلکه دا کار د منافقانو له حاله سره وړ (لائق) او مناسب دی.

فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفۡوَانٍ عَلَيۡهِ تُرَابٌ فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلۡدًا ؕ لَا يَقۡدِرُوۡنَ عَلٰى شَىۡءٍ مِّمَّا كَسَبُوۡا ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۲۶۴﴾

نو مثال د دې (ريا کار په صرفولو د مال کې) په شان دصفت د هغې ښوئې تيږې (ګټې) دی، چې پرتې وي په هغې باندې څه خاورې، پس ورسيږي هغې ته زورور باران، نو پرېږدي دغه تيږه (ګټه) پاکه (صافه له ګرده)، نه به قادريږي (دا ريا کاران) په هيڅ شي باندې (له ثوابه د) هغه شي چې کسب کړی دی دوی، او الله نه ښيي (سمه صافه لار د خير او ارشاد) قوم کافرانو ته (په سبب د ظلم د دوی پر خپلو نفسونو).

تفسیر: مخکې وویل شول چې: په اخلاص سره خیرات ورکول هسې دي؛ لکه چې له یوې کرلې شوې دانې څخه (۷۰۰) دانې پیدا شي، اوس فرمایي چې: په «خیرات» کې نیت شرط دی، که څوک د «ریاء» او خلقو ته د ځان ښوولو په نیت «صدقه» ورکړي، نو د هغه مثال هسې وګڼئ لکه چې څوک کومه دانه پر یوه داسې ښویه تیږه (ګټه) باندې وکري، چې پر هغې باندې لږ څه خاوره پرته وي، خو کله چې باران ودریږي، نو هغه بیخي صافه او پاکه شي، نو په هغې باندې به هغه دانه څنګه زرغونه شي؟ هم داسې به په صدقاتو کې ریاکارانو ته څه ثواب ورسیږي؟ بلکه نه وررسیږي.

وَمَثَلُ الَّذِينَ يُنفِقُونَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللَّهِ وَتَثْبِيتًا مِّنْ أَنفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍ بِرَبْوَةٍ أَصَابَهَا وَابِلٌ فَآتَتْ أُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ فَإِن لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٢٦٥﴾

او مثال د هغو کسانو چې صرفوي (لګوي) مالونه خپل لپاره د طلب د رضا د الله، او لپاره د ثبات (د زړه او صدق چې پیدا دی) له نفسونو ددوی څخه (په ایمان باندې) په شان د یوه باغ دی په لوړه ځمکه (مستعده مامونه) باندې، چې ورسیږي دې (باغ) ته زورور باران؛ نو ورکړي میوې خپلې دوچنده، نو که ونه رسیږي (باغ) ته زورور باران نو نری باران (یا پرخه پرې اوري هم) کافي ده، او الله په هغو شیانو چې تاسې یې کوئ ښه لیدونکی دی.

تفسیر: له زورور باران څخه مراد ډېر مال صرفول دي، او له نري څخه د لږ مال صرفول مقصد دي، د زړونو له تثبیت څخه مطلب داد دې، چې ثابت کړي زړونه په ثواب میندلو کې، یعنې یقین ولرئ چې د خیرات ثواب خامخا دوی ته رسېدونکی دی، که د دوی نیت سم وي، نو له ډېرو صرفولو څخه به دوی ته ډېر ثواب ور رسیږي، او په لږ خیرات سره د ثواب فائده ورحاصلیږي، لکه چې په خالصې (مستعدې، هوارې، معتدلې، هواداري، او لمریزې) ځمکې (یو ښکلی ښه مېوه دار) باغ وي، نو څومره چې باران (متدرجا) ووریږي، هغومره ګټه به ور ورسیږي، که یې نیت سم نه وي، په هره اندازه چې زیات مال صرف کړي، هغومره مال یې ضایع، او دې زیانمن کیږي، څکه چې په زیات مال ورکولو کې به ریا او ځان ښوول هم زیات وي، لکه چې په ښویه تیږه باندې دانه نه زرغونیږي، نو څومره زورور باران چې ووریږي، هغومره زیان رسوي.

أَيَوَدُّ أَحَدُكُمْ أَن تَكُونَ لَهُ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ لَهُ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢٦٦﴾

آیا خوښوي یو له تاسو څخه دا چې وي دې ده لره یو باغ له خرماوو څخه، او له انګورو څخه، چې بهیږي له لاندې (د ونو) د هغو ویالې، چې وي ده لره په دغه (باغ) کې له (نورو) هر ډوله (قسمه) مېوو، او ورسیږي ده ته زوړوالی، او وي ده لره اولاد ضعیفان، پس ورسیږي هغه (باغ) ته سخت باد، چې وي په هغه کې اور؛ نو وسوځي دا (باغ) هم داسې (په شان د دې تېر شوي بیان)، بیانوي الله تاسې ته دلائل (د خپل قدرت) لپاره د دې چې تاسې فکر وکړئ ! (په هغه کې او ترې پند واخلئ !).

تفسیر: دا مثال د هغه چا دی چې د ریا او ځان ښکارولو، او د خلقو د خبرولو لپاره خیر او خیرات کوي، یا د خیرات ورکولو په مقابل کې پر مسکینانو باندې خپل منت او احسان ږدي، یا ایذاء، او ضرر وررسوي، یعنې دا داسې دی لکه چې یو سړی د خپل ځلمیتوب، او قوت په وخت کې یو ښه باغ (بڼ) تیار کړي، چې د ضعف

او زړښت په وخت کې يې مېوې وخوري، او د ضرورت په وخت کې يې په ښه او کار ورشي، نو کله چې دی ضعيف او سپين ږيری شي، او د هغه باغ مېوې هم خپلې ترقی او زياتوالي ته ورسيږي، نو دا باغ د ده د عين احتياج او اړتيا (محتاجۍ) په وخت کې وسوځي، يعنې خير خيرات او صدقات لکه مېوه دار باغ داسې دی، چې د هغه مېوه په آخرت کې په کار ورځي، کله چې د چا نيت خراب وي، نو د ده دا باغ سوځي، نو بيا د هغه مېوه چې ثواب دی، په آخرت کې څرنګه د هغه په ښه ورشي؟ حق سبحانه و تعالی داسې په ښکاره او صاف ډول سره خلقو ته پند ورکوي، او دوی پوهوي، څو ښه وپوهيږي، او د ده د قدرت په علائمو او آثارو ښه غور، او فکر وکړي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبۡتُمۡ وَمِمَّآ أَخۡرَجۡنَا لَكُم مِّنَ ٱلۡأَرۡضِۖ وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلۡخَبِيثَ مِنۡهُ تُنفِقُونَ وَلَسۡتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغۡمِضُواْ فِيهِۚ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٢٦٧﴾

ای هغو کسانو ! چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) خرچ کوئ ! له حلالو (پاکو، غورو) دهغو مالونو چې (په کسب سره) تاسې ګټلي او له هغو (شيانو) چې ايستلي دي مونږ تاسې لره له ځمکې څخه (د حلالو،پاکو، غورو شيانو)، او قصد مه کوئ تاسې د (ورکولو) دخبيثو (حرامو نابودو شيانو) له هغه ماله چې لګوئ يې تاسې (د الله په لاره کې) حال دا چې نه يئ تاسې اخيستونکي د هغه (ناکاره شي په خپل حق کې) مګر (خو يې داسې اخلئ) چې سترګې پټې کړئ په (اخيستو د) هغه کې، او پوه شئ ! چې ببشکه الله غني دی (بې پروا له هر چا او هر شي، ورته تل ښه ستاينه «صفت» او) ثنا ويلی شوی.

تفسير: يعني دالله تعالی په نزد دصدقاتو دمقبوليت شرط دا دي چې خيرات دې دحلال مال څخه وي او هيڅ شبهه دې په کې نه وي او هم په مال ښه او غوره شيان بايد خيرات او صدقه شي لکه څرنګه چې يو خراب مال قبلول ستاسې زړه نه غواړي، دالله په لار کې يې هم مه ورکوئ نو الله تعالی هم ښه او غوره شي خوښوي.

ٱلشَّيۡطَٰنُ يَعِدُكُمُ ٱلۡفَقۡرَ وَيَأۡمُرُكُم بِٱلۡفَحۡشَآءِۖ وَٱللَّهُ يَعِدُكُم مَّغۡفِرَةً مِّنۡهُ وَفَضۡلًاۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦٨﴾

شيطان وعده درکوي تاسې ته دخوارئ (او وېروي مو چې خوار به شئ)، او حکم کوي تاسې ته په (کولو د) ناوړو (غلطو) کارونو، (لکه بخل)، او الله وعده کوي له تاسې سره د مغفرت (د ګناهونو) له خپله (لوري) او د فضل (د انفاق په بدل کې)، او الله پراخ دی (رحمت، فضل، او احسان د ده)، ښه عالم دی (پر ټولو احوالو).

تفسير: که د چا په زړه کې داسې خيال وګرځي: «که خيرات ورکړم، نو خوار او مفلس به شم»، نو ښايي چې دې يقين او اعتماد ولري: چې دا خبره د شيطان له خوا دهغه په زړه کې لوېدلې ده، او داسې دې نه وايي چې: «ما خو د شيطان شکل په سترګو نه دی ليدلی، نو د هغه حکم به ماته څرنګه القاء کيږي؟» او که دا خيال يې په زړه کې وګرځي، چې د «صدقې» او خيرات په وسيله يې مغفرت ور په برخه کيږي، او په مال کې يې زياتوالی او برکت پيدا کيږي، نو ودې پوهيږي، چې دا خبره د الله تعالی له خوا د هغه په زړه کې لوېدلې ده، نو دالله جل جلاله شکر دې وباسي، او د الله عم نواله په خزانه کې د هيڅ شي کمی نشته، او د ګردو په ظاهر او باطن «خبير» دی.

يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿۲۶۹﴾

ورکوي (الله) حکمت (نافع علم سره له عمله) هر چا ته چې اراده وکړي (د ورکولو يې) او هر چا ته چې ورکړ شو حکمت (نافع علم سره له عمله) نو په تحقيق سره ورکړی شو (ده ته) خير ډېر، او نه اخلي پند مګر خاوندان د عقلونو (صافو چې د وهم او نفسي غوښتنو شوائب په کې نه وي).

**تفسير:** يعنې هر هغه چا ته چې الله اراده وکړي، علم تحقيق، د عمل تدقيق، او د ديني خبرو او خيرات ورکولو پوهه ورکوي، چې په کوم نيت؟ او له کوم مال څخه؟ او چا ته؟ او کوم ډول سره يې محتاج ته ورکړي؟، او هر چا ته چې پوهه ورکړی شوې ده، هغه ته د دنيا او عقبی لوی نعمت او ښېګڼه په برخه شوې ده، ابو الليث رحمه الله وايي چې: «الله جل جلاله دنيوي مال ته ﴿قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ﴾ او علم ته ﴿خَيْرًا كَثِيرًا﴾ فرمايلي دي، نو ښايي چې علم او پوهنې ته ډېر اهميت ورکړی شي !».

وَمَا أَنْفَقْتُمْ مِنْ نَفَقَةٍ أَوْ نَذَرْتُمْ مِنْ نَذْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُهُ ۗ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ أَنْصَارٍ ﴿۲۷۰﴾

او هغه شی چې صرف کړئ تاسې له نفقې (لکه زکات او خيرات، لږ يا ډېر) يا (يې) لازم کړئ (پخپل ځان) له کوم نذره، نو بېشکه الله تعالی ته معلوم دی هغه، او نشته لپاره د ظالمانو (چې بې ځايه مال صرفوي) هيڅ مدد کوونکی (ساتونکی له عذابه د الله).

**فائده:** «نذر» په منلو سره واجبيږي، نو که بيا يې ادا نه کړي ګناهګاريږي، «نذر» پرته د الله تعالی په نامه؛ د بل چا په نامه روا نه دی.

إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ ۖ وَإِنْ تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ ۚ وَيُكَفِّرُ عَنْكُمْ مِنْ سَيِّئَاتِكُمْ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿۲۷۱﴾

که ښکاره کوئ تاسې خيراتونه پس ښه کار دی (ښکاره کول د) هغه، او که پټوئ يې تاسې (په وخت د ورکولو کې) او ورکوئ يې تاسې فقيرانو ته نو دا (پټ ورکول بهتر او) خير دی تاسې ته، او لرې به کړي (الله) له تاسې نه ځينې د ګناهونو ستاسې، او الله په هغو کارونو چې کوئ يې تاسې ښه خبردار دی (او هيڅ شی ترې پټ نه دی).

**تفسير:** که خلقو ته د ورښوولو په نيت نه وي، نو خيرات ورکول په ښکاره ډول سره بهتر دی، چې د نورو شوق او رغبت هم ورته وشي، او په پټه سره هم خيرات ورکول ښه دي، چې اخيستونکي ته حيا ورنشي، لنډه يې دا چې اظهار او اخفاء دواړه بهتر دي، مګر د هرې موقع او مصلحت لحاظ يوه ضروري خبره ده.

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدَاهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ ۗ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ خَيْرٍ فَلِأَنْفُسِكُمْ ۚ وَمَا تُنْفِقُونَ إِلَّا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللَّهِ ۚ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ خَيْرٍ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴿۲۷۲﴾

نشته پر تا باندې (پر سمه صافه لاره) برابرول د دوی، وليکن الله (په سمه صافه لاره) برابروي هغه څوک چې اراده وکړي (د برابروالي يې) او هر هغه شی چې صرفوئ (يې) تاسې له خيره (له مال

نه) پس لپاره د نفسونو (ځانونو) ستاسې دی، او نه صرفوئ تاسې (کوم شی ای مؤمنانو !) مګر (صرفوئ یې) خاص لپاره دلیدو د مخ د الله جل جلاله، او هر هغه شی چې صرفوئ (یې) تاسې له خیره (له مال نه) نو پوره به درکړ شي تاسې ته (ثواب د هغه) او په تاسې به ظلم ونه کړ شي (د ثواب په کموالي سره).

تفسیر: کله چې رسول اکرم صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم خپلو اصحابو ته امر ورکړ؛ چې له مسلمانانو ځنې پرته بل هیچا ته خیرات مه ورکوئ !، او په دې امر سره دا مصلحت وو چې د مال او شتو له امله کافران د اسلام په لوري راغب شي، نو وروسته له دې نه یې داسې امر وفرمایه چې: دا ثواب به هلته دررسیږي، چې له خیرات ورکولو ځنې د الله تعالی خوښي مطلوبه وي، نو دا آیت نازل شو، او په دې کې عام حکم راغی، چې د پاک الله په لاره کې چې هر چا ته مال ورکړئ؛ د هغه ثواب تاسو درکاوه کیږي، د مسلم او غیر مسلم څه تقیید نشته، یعنې هر چا ته صدقه ورکوئ، ښایي چې یواځې د پاک الله په نامه وي، په هغه کې د مسلمان او نا مسلمان څه تخصیص نه دی پکار، یواځې په صدقه ورکولو کې دغه خبره ضروري ده، چې محض «لوجه الله» وي.

لِلْفُقَرَاۤءِ الَّذِیْنَ اُحْصِرُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ لَا یَسْتَطِیْعُوْنَ ضَرْبًا فِی الْاَرْضِ یَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِیَاۤءَ مِنَ التَّعَفُّفِ تَعْرِفُهُمْ بِسِیْمٰهُمْ لَا یَسْـَٔلُوْنَ النَّاسَ اِلْحَافًا وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَیْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِیْمٌ ﴿۲۷۳﴾

(خیراتونه) ستاسې لپاره د هغو فقیرانو دي چې بند کړی شوي دي په لاره د الله (په جهاد او نورو طاعاتو) کې، چې توان نه لري دوی د ګرځېدلو په ځمکه کې (لپاره د معاش او تجارت، د الله په اطاعت او عبادت کې د مشغولتیا په سبب)، ګمان کوي په دوی باندې ناپوه (په حال د دوی) د غنیانو، په سبب د نه سوال کولو په کوښښ سره، پیژني به ته (ای سامعه !) دوی، په څېرو (علائمو د تواضع او اثر د مجاهدې) د دوی سره، نه کوي دوی سوال له خلقو ځنې په سختۍ (په الحاح او کوښښ) سره، او هر شی چې تاسې صرفوئ (یې په هر شي کې) له خیره (له مال نه) پس بېشکه الله په هغه باندې (هم) ښه عالم دی.

تفسیر: یعنې داسې خلقو ته صدقه ورکول ډېر ثواب لري، چې د الله جل وعلی شأنه په لاره کې او دهغه د دین په کار کې مشغول او مقید وي، او د تګ او راتګ او د خوړو، لباس، او نورو له ګټلو ځنې پاتې وي، او هیچا ته خپل حاجت او اړتیا (محتاجي) نه ښکاروي، لکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ځینې اصحاب داسې هم وو؛ چې دوی خپل کور کهول خوشې کړی وو، او د (صفي) په اصحابو کې شامل شوي وو، او پخپله خوښه او رضا سره د پاک محمد صلی الله علیه وسلم صحبت او خدمت یې خپلو ځانو ته غوره کړی وو، دیني علوم به یې زده کول، مفسدینو او شر اچوونکو سره به یې «جهاد» کاوه، همداسې اوس هم پر مسلمانانو باندې د هغو کسانو امداد او مرسته حتمي او ضروري ده، چې د قرآن عظیم الشأن په یادولو، یا د دیني علومو په تحصیل کې بوخت او مشغول دي، د څېرې له پېژندلو ځنې دا مطلب دی چې د هغوی څېرې ډېرې ژېړې او بدن یې نری را بربښي، او د جد او جهد آثار د هغوی په مخونو کې له ورایه ښکاریږي.

اَلَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ بِالَّیْلِ وَالنَّهَارِ سِرًّا وَّعَلَانِیَةً فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ ﴿۲۷۴﴾

هغه کسان چې صرفوي مالونه خپل (د الله په لاره کې) په شپه او ورځ کې په پټه او په ښکاره؛ پس (شته) دوی ته اجر (ثواب) د دوی، په نزد د رب د دوی، او نشته (هیڅ ډول) وېره په دوی باندې، او نه به دوی هیڅکله غمجن کیږي (د ثواب په نقصان سره).

اَلَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ الرِّبٰوا لَا يَقُوْمُوْنَ اِلَّا كَمَا يَقُوْمُ الَّذِيْ يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْۤا اِنَّمَا الْبَيْعُ مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ؕ

هغه کسان چې خوري (يعنې اخلي) سود (له خلقو)؛ نه پاڅيږي دوی (د قيامت په ورځ کې) مګر (پاڅيږي داسې) لکه چې پاڅيږي هغه څوک چې حواس يې خراب کړي وي شيطان له (خپله) اثره، دا (حال د دوی) په سبب د دې دی، چې دوی ويل چې: بېشکه هم دا خبره ده، چې تجارت خو هم داسې دی (په جواز کې) لکه سود، حال دا چې حلال کړی دی الله تجارت او حرام کړی يې دی سود.

**تفسير:** سود خور په قيامت کې داسې له خپل قبر څخه پورته کيږي، لکه لېونی او هغه څوک چې حواس يې خراب شوي وي، او دا حالت به د دې له امله وي، چې ده حلال او حرام سره ګډوډ، او دا يې څکه کول چې په دغو دواړو کې يې ګټه مقصوده وه، او دا دواړه يې حلال ګڼل، حال دا چې د «بيعې» او «ربا» په منځ کې ډېر فرق شته، «بيع» دالله تعالی لخوا حلاله، او «ربا» حرامه ده.

**فائده:** هغه نفع چې په «بيع» کې ده؛ هغه د مال په مقابل کې ده، لکه څوک چې د يوې درهمې جامه په يوه نيمه درهمه خرڅه کړي، او «سود» هغه دی چې څوک پکې بلا عوضه نفع واخلي، لکه چې د يوې درهمې په عوض کې دوې درهمې واخلي، په لومړنې صورت کې کله چې جامې او درهمې دواړه سره بېل بېل شيان دي، او د دوی د هر يوه نفع او غرض سره جلا (جدا) دی، نو څکه د هغوی په منځ کې موازنه او «مساوات في نفسه» صحيح نه دی، او کله چې خرڅولو او اخيستلو ته حاجت پيدا شي، نو د موازنې او مساوات لپاره دخلقو د ضرورت او حاجت څخه پرته بل کوم شی نشته، او د دوی د هر يوه ضرورت او رغبت له حده زيات مختلف دی.

فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ؕ وَاَمْرُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۷۵﴾

پس هر څوک چې راشي ده ته پند له (طرفه د) رب د ده؛ پس منع شو (له سوده) پس معاف دی ده ته هغه شی چې پخوا يې اخيستی دی، او معامله يې الله ته (سپارلې شوې) ده، او هر څوک چې بېرته وګرځېده (سود ته او حلال يې وګاڼه) نو دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ) دي، چې دوی به په دې اور کې تل وي.

**تفسير:** يعنې هغه سود چې له حرمت څخه يې پخوا اخيستی دی په دنيا کې؛ د هغه د استرداد امر د هغه خاوند ته نه ورکاوه کيږي، يعنې تاسې حق نه لرئ چې د هغه مطالبه وکړئ، او په آخرت کې حق سبحانه وتعالی اختيار لري؛ چې هغه پخپل فضل او مرحمت سره وبخښي، خو وروسته له حرمته، که بيا هم څوک د سود له اخيستلو څخه لاس وانخلي، بلکه بې پروا يې وخوري، نو هغه دوزخي دی، او د الله تعالی د حکمونو په مقابل کې د خپلو عقلي دليلونو د وړاندې کولو سزا يې همغه ده چې پاک الله يې فرمايي.

يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ كَفَّارٍ اَثِيْمٍ ﴿۲۷۶﴾

ورک کوي الله (برکت د) سود، او زياتوي (ثواب د) خيراتونو، او الله محبت نه کوي له هر سخت کافر ګناهګار سره (بلکه دغه ناشکر د حرامو حلالوونکی معذبوي هم).

**تفسير:** الله تعالی د سود مال نابود او تباه کوي، يعنې په هغه کې هيڅ خير او برکت نه وي، بلکه د هغه اصل مال هم ضائع کيږي، په حديث کې راغلي دي، چې: «د سود مال په هره اندازه چې زيات شي؛ آخر يې افلاس او تاوان دی»،

او دخيرات د مال له زيادت ځني دا مطلب دی چې په هغه مال کې زيادات راځي، او پاک الله په هغه کې خير او برکت ږدي، او د هغه ثواب ډېروي، لکه چې په احاديثو کې هم راغلي دي.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿۲۷۷﴾

بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی (په ټولو مؤمن به شيانو) او کوي دوی ښه (عملونه) او قائموي دوی (سم ادا کوي سره له ټولو حقوقو په ترتيب) لمونځ، او ورکوي دوی زکات، شته دوی لره اجر (ثواب) د دوی په نزد د رب د دوی، او نشته (هيڅ ډول) وېره په دوی باندې، او نه به دوی (هيڅکله) غمجن کېږي (د ثواب په نقصان سره).

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۲۷۸﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) ووېرېږئ ! له الله نه، او پرېږدئ ! هغه چې پاتې شوي دي له سوده؛ که يئ تاسې مؤمنان (ايمان لرونکي په شريعت په رښتيا سره).

تفسير: يعنې پخوا له دې ممانعت ځني؛ څه سود مو چې اخيستی ده بلا پسې، خو وروسته له دې ممانعته هغه سود چې اوښتی دی، مه يې اخلئ !.

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِن تُبْتُمْ فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴿۲۷۹﴾

پس که ونه کړ تاسې (دا کار) نو آګاه شئ (او ځان تيار کړئ) تاسې جنګ ته له (طرفه د) الله او رسول د ده، او که توبه ګاره شوئ تاسې (له اخيستلو د سوده) نو شته تاسو لره اصل د مالونو ستاسې، مه کوئ تاسې ظلم (چې سود به هم غواړئ) او نه دی ظلم کاوه شي پر تاسې (چې له رأس المال څخه مو څه ستون کړی شي).

تفسير: يعنې هغه پخوانی سود مو چې اخيستی دی، که هغه په خپل رأس المال کې حساب او له رأس المال ځني يې کم کړئ، نو پر تاسې باندې ظلم او تېری کېږي، او وروسته له ممانعته که تاسې اوښتی سود وغواړئ، نو دا ستاسو ظلم دی.

وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۸۰﴾

او که وو پوروړی (قرض وړونکی) خاوند د ناداری نو پر تاسې لازم دی انتظار پوروړی (قرض وړونکی) ته تر وخته د پراخی - د پوروړي (قرض وړونکي) او دا چې بخښنه وکړئ تاسې (دی پوروړي ته) خير (ډېره بهتره) ده تاسې ته که يئ تاسې چې پوهېږئ (په هغه خير).

تفسير: يعنې کله چې د سود ممانعت وشو، او د هغه اخيستل او ورکول موقوف شول، نو اوس تاسې خپل پور (قرض) له مفلس پوروړي ځني درګرده غواړئ، داسې غوښتنه نه ده پکار، بلکه ناداره لره مهلت ورکړئ ! او که مو د لاسه کېږي هغه (قرض) وروبخښئ !.

وَاتَّقُوْا يَوْمًا تُرْجَعُوْنَ فِيْهِ إِلَى اللّٰهِ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۲۸۱﴾

او وویرېږئ تاسې له (عذابه د) هغې ورځې چې بېرته بېول کیږئ تاسې په هغې کې طرف د الله ته، بیا به پوره ور کړی شي هر نفس ته (جزا) د هغه عمل چې (ده له خیره یا شره) کړی وي، او په دوی به ظلم ونه کړ شي (د عذاب په ډېروالي یا د ثواب په لږوالي سره).

تفسیر: یعني په قیامت کې به د ګردو اعمالو جزا او سزا ورکوله کیږي، نو اوس دې هر څوک فکر وکړي چې ښه کار کوي که بد؟ ګټه او سود اخلي؟ یا خیرات ورکوي؟

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوْهُ ۚ وَلْيَكْتُبْ بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ ۢ بِالْعَدْلِ ۪ وَلَا يَاْبَ كَاتِبٌ اَنْ يَّكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّٰهُ فَلْيَكْتُبْ ۚ وَلْيُمْلِلِ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْـًٔا ؕ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) کله چې یو له بله سره معاملې کوئ تاسې په پور (قرض) سره تر ښېتې ټاکلې (مقرر کړې) شوې پورې؛ نو ولیکئ تاسې هغه (پور – قرض) ! او ودې لیکي (کاغذ د پور – قرض) په منځ ستاسې کې یو کاتب په عدل (انصاف سره واقعا، نه کم او نه زیات)، او منع دې نه راوړي (هیڅ یو) کاتب (د دې کاغذ) له لیکلو څخه، (او ښایي چې ولیکي دا معامله) هغسې چې ښوونه کړېده کاتب ته الله، نو ودې لیکي، او بیان دې وکړي (کاتب ته) هغه څوک چې په ده باندې حق (پور – قرض) دی، او ودې ویرېږي (کاتب) له الله چې رب د ده دی، او نه دې کموي له هغه (حقه) هیڅ شی، (یعني دی دې هم په اقرار کې هیڅ زیاتوالی او کموالی، تغییر او تبدیل نه کوي).

تفسیر: د پور (قرض) په نسبت داسې معلومیږي چې دا ډول معامله جائزه ده، مګر هر کله چې دا معامله په راتلونکې مودې پورې اړه لري، او د هېرې، مړینې (مرګ)، نشتوالي، او د نورو جنګ جګړو احتمال هم په کې شته، نو ځکه ضروري ده چې د هغې د ادا کولو نېټه په داسې اهتمام سره وټاکله (مقرره) شي !، چې وروسته له هغه داسې کومه جګړه او مخالفت په کې پېښ نه شي، او د هغې صورت همدا دی چې دا خبره پر یوه کاغذ باندې ولیکئ، او د بېرته ورسولو نېټه وټاکله (مقرره) شي !، او د پور (قرض) ورکوونکي او پوروړي (قرض وړونکي) نومونه او ښکاره پېژندګلوی، او د هغې معاملې پورې نور تړلي تفصیلات او لازمي خبرې په صاف او ښکاره ډول سره ولیکلی شي !، او لیکونکي (کاتب) لره ښایي چې بې له انکاره همغسې چې د شرعې شریفې حکم دی؛ له هغه سره یې سم او برابر ولیکي !، او له عدل او انصاف څخه لرې نه شي !، ښه خو دا دی چې دا حجت خپله پوروړی (قرض وړونکی) پخپل قلم سره ولیکي !، یا یې لیکونکي ته ووایي، چې هغه یې سم د ده له وینا سره ولیکي، او د بل چا په حق کې هیڅ ډول نقصان او تاوان پېښ نه کړي !.

فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا اَوْ ضَعِيْفًا اَوْ لَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ ؕ

پس که وو هغه څوک چې په ده باندې حق (پور یا قرض) دی؛ کم عقل (مبذر، بې وقوف، او لیونی) یا ضعیف (لکه ووړ، یا ډېر زوړ «بوډا»)، یا یې توان نه وي چې اقرار وکړي (چې ګنګ

وي، يا د كاتب په ژبه نه پوهيږي) دى پخپله، نو بيان دې وكړي ولي (واكدار) د ده په عدل (انصاف سره چې سمه خبره ووايي، نه كمه نه زياته).

تفسير: يعني هغه مديون او پوروړى چې كم عقل يا ناپوه يا مبذر يا ضعيف يا سست يا ببرا وي، لكه چې ووړ، يا زوړ، او د معاملې د پوهېدلو پوهه نه لري، يا د هغې معاملې لازمي خبرې ليكونكي ته نشي ويلى (لكه چې گونگى وي، يا د كاتب په ژبه نه پوهيږي) نو په داسې صورت كې د مديون - واكدار يا وارث يا ولي يا وصى دې هغه معامله په عدل او انصاف سره بې له زياتوالي او كموالي پاى ته ورسوي !، او ليكونكي ته دې ووايي چې ويې ليكي.

وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ ۚ

او شاهد ونيسئ تاسې (په خپلو معاملاتو كې) دوه شاهدان له سړيو ستاسې (چې مسلمانان، عاقلان، او بالغان وي) پس كه نه وو دوه نارينه (شاهدان) نو يو سړى دې وي او دوه ښځې له هغو كسانو چې تاسې ترې راضي يئ (د عدالت له كبله) له شاهدانو (د ښځو دا تعدد د دې لپاره دى كه) هېره كړي (دا شاهدي) يوه له دې دواړو؛ نو ور په ياد به كړي هغه يوه له دې دواړو (چې ور په يادوي) هغې بلې (هېر زړې ته).

تفسير: او تاسې ته ښايي چې په دې معاملې كې لږ تر لږه دوه نارينه يا يو نارينه او دوې ښځې شاهدانې ونيسئ !، (ځكه چې په ښځو كې عقل كم او هېره ډېره وي) او شاهد هم ښايي د غوره كولو وړ يعني لائق د اعتماد او د اعتبار خاوند وي «له سړيو ستاسې»؛ يعني هغه دوه تنه مسلمانان، عاقلان، بالغان، او اصيلان وي، او د كافر شاهدي قبوله نه ده».

وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا ۚ وَلَا تَسْأَمُوا أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ ۚ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَأَدْنَىٰ أَلَّا تَرْتَابُوا

او نه دې منع راوړي شاهدان كله چې وبلل شي دوى (شاهدي ته)، او مه خوابدي كيږئ (اى معامله دارانو !) له دې چې وليكئ دا (حق كه) لږ وي او كه ډېر وي تر نېټې د هغې پورې، دا (ليكل) ستاسې پوره عدل دى په نزد د الله، او ښه مرسته كوونكى (ډېر محكم) دى لپاره (د اداء) د شاهدى، او ډېر نږدې دى دې ته چې شكمن نه شئ تاسې (د دې معاملې په نېټه او مقدار كې).

تفسير: يعني هر كله چې څوک د شاهد كېدلو يا د شهادت د اداء كولو لپاره وغوښتل شي، نو منع دې نه راوړي، او نه دې انكار او نه دې په كې سستي كوي !، او ښايي چې د معاملاتو په ليكلو كې هيڅ ډول قصور او اهمال ونه كړ شي ! (تر دې چې نېټه دې هم په كې وليكلى شي !) عام له دې نه چې هغه معامله وړوكې وي، كه لويه، ځكه پوره عدل او انصاف په همدې كې دى، او په شهادت كې هم زيات ډاډ په همدې ليک باندې دى، او د نه هېرېدو او نه تېروتلو او د هيچا د حق د نه ضايع كېدلو اطمينان او تسلي هم په همدغه ليک باندې ده.

إِلَّا أَن تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا تَكْتُبُوهَا ۗ وَأَشْهِدُوا إِذَا تَبَايَعْتُمْ ۚ وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَلَا شَهِيدٌ ۚ

مگر كه وي (دا معامله) ستاسې تجارت په حضور (لاس په لاس) چې چلوئ يې تاسې (په راكړه او وركړه سره) په خپلو منځو كې پس نشته پر تاسې باندې هيڅ گناه چې ونه ليكئ تاسې دا

(معامله)، او شاهدان ونیسئ تاسې ! کله چې یو له بله سره اخیستل او یا خرڅول کوئ تاسې !،
او نه دې رسوي نقصان کاتب او نه شاهد، (یعنې په کتابت او شهادت کې دې څه زیاتوالی او
کموالی نه کوي - یا) او ضرر دې نه رسولی شي کاتب ته، او نه شاهد ته (یعنې که معذور وي،
زور دې پر هیڅوک و نه کړ شي).

**تفسیر:** یعنې که د سوداګرۍ معامله لاس په لاس وي، د جنس په بدل کې جنس یا نغده معامله وي، او د پور (قرض) معامله نه وي، نو په دې صورت کې یې نه لیکل وبال نه دی، خو شاهد نیول په هسې معاملو کې ضرور دي، چې په هغې کې وروسته له دې نه کومه جګړه او جنجال پېښ نه شي، او ښایي چې لیکونکی او شاهد هیڅوک ته کوم تاوان ورپېښ نه کړي، یعنې نه دې مدعي او نه دې مدعی علیه ته څه نقصان او تاوان رسوي، بلکه همغه حق دې ادا کړي، چې د ده په غاړه واجب دی (او هم داسې کاتب او شاهد ته دې هم څه ضرر نه رسوي).

وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۚ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۚ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٢٨٢﴾
وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰى سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِهٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ۚ فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ
اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ ۚ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ۚ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗۤ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ۚ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ
عَلِيْمٌ ﴿٢٨٣﴾

او که وکړ تاسې (دا کار د اضرار) نو بېشکه دا ګناه ده (لاحقه) په تاسې پورې، او وویرېږئ تاسې
له الله نه، او ښوونه (د احکامو) کوي تاسې ته الله، او الله په هر شي باندې ښه عالم دی، (او ګرد
شیان ورته ښه معلوم دي). او که یئ تاسې په سفر باندې او ومو نه موند کوم کاتب نو (واخلئ)
ګروې قبض کړی شوې، پس که امین (معتبر) وګڼل ځینو ستاسې ځینې (نور، چې ګروي یې
وانه خیستله) نو اداء دې کړي هغه څوک چې امین ګرځولی شوی وي امانت د ده (یعنې د پور
ورکوونکي)، او ودې ویریږي له الله څخه چې رب د ده دی، او مه پټوئ شهادت (ای شاهدانو
یا ای مدیونانو ! چې ګویا اقرار هم په خپل ځان باندې شاهدي ده)، او هر چا چې پټه کړه دا
(شاهدي) نو بېشکه شان دا دی چې: ګناهګار دی زړه د ده، او الله (په هغو کارونو) چې کوئ
(یې تاسې) ښه عالم دی، (او هر شی ښه ورته معلوم دی).

**تفسیر:** یعنې که په سفر کې د قرض او پور معامله درپېښه شي، او حجت او سند لیکلو ته موقع او فرصت نه وي، او لیکونکي مو په لاس درنشي، نو پوروړی (قرض ورونکی) دې د خپل پور (قرض) په عوض کې کوم شی ګرو (ګاڼه) ورته کیږدي.

**فائده:** په «سفر» کې د «حضر» په نسبت ګروي (ګاڼې) ته زیات ضرورت پېښیږي، ځکه لیکل او شاهدي په «حضر» په اسانی سره صورت موندلی شي، او پور (قرض) ورکوونکي ته په اسانی سره اطمینان او تسلي پیدا کیږي، نو ځکه په سفر کې د «رهن» او ګروی (ګاڼې) اخیستلو حکم وشو، که نه په «حضر» او د لیکونکي او شاهدانو په موجودیت کې هم د ګروی (ګاڼې) اخیستل روا دي، که پور (قرض) ورکوونکی پخپل پوروړي (قرض وړونکي) باندې اطمینان او اعتبار لري، او پرې ډاډه وي، او ترې ګروي (ګاڼه) ونه غواړي، نو پر پوروړي لازم دي چې د پور (قرض) د خاوند حق پوره او کامل ادا کړي !، او له الله تعالی جل جلاله څنې وویرېږي !، او د حق د خاوند په حق کې دې په امانت سره معامله وکړي !.

لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِيْٓ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ؕ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۸۴﴾

(خاص) الله لره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي: (له مواليدو، عناصر، او نورو ټولو علوياتو او سفلياتو، سره له اسمانو او ځمکې ملکاً وخلقاً وعبيداً)، او که ښکاره کړئ تاسې هغه (ارادې او بد نيتونه) چې په زړونو ستاسې کې دي، يا پټ کړئ تاسې هغه، حساب به وکړي له تاسې سره په هغه باندې الله، پس مغفرت کوي هغه چاته چې اراده وکړي (الله د مغفرت يې) او په عذابوي به هغه څوک چې اراده وکړي (الله د عذابولو يې) او الله په هر شي باندې ښه قادر دی (له ثوابه او عقابه او حسابه هم).

**تفسير:** هغه پاک ذات چې پر مونږ باندې د عبادت استحقاق لري، ښايي چې مالك وي، هغه ذات چې ځمونږ د ټولو پټو او ښکاره وو کارونو حساب او کتاب اخيستی شي، ښايي چې په ګردو امورو باندې ښه «عليم» او «خبير» وي، او هغه ذات چې ځمونږ د تمامو شيانو حساب اخيستی شي، او مونږ ته د ښو او بدو چارو په مقابل کې جزا او سزا راکولی شي، ښايي چې په ګردو شيانو باندې قدرت ولري، او ښه قادر وي، نو دلته يې بيا هم دا درې واړه کمالات بيان کړل؛ چې هغه «ملک، علم، قدرت» دی، او د همدې صفاتو ذکر يې په «آيت الکرسي» کې هم فرمايلی دی.

مطلب يې دا دی (حق سبحانه وتعالی) د ګردو شيانو مالك او خالق دی، د ده علم په ګردو مخلوقاتو او موجوداتو باندې محيط دی، د ده قدرت پر ټولو حاوي او شامل دی، نو بيا د هسې مالك الملك، عليم، بصير، او قدير ذات احکام نه منل عام له دې نه چې د الله تعالی دغه نافرماني په پټه سره وي که په ښکاره سره، څرنګه به مناسب وي؟ او بيا به دا نافرمان بنده څنګه د الله تعالی له عذابه ځان ژغوري (ساتي)؟

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ؕ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۟ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۟ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾

ايمان راوړی دی رسول په هغه شي چې نازل کړی شوی دی ده ته له (طرفه د) رب د ده، او مؤمنانو (هم ايمان راوړی دی) ټولو (دوی) ايمان راوړی دی په الله باندې، او په پرښتو باندې د ده، او په کتابونو د ده، او په رسولانو د ده (په داسې حال کې چې وايي دوی) فرق نه کوو په منځ د هيڅ يو (رسول) له رسولانو د الله کې، او وايي (رسول الله او مؤمنان): واورېده مونږ (پيغام ستا)، او قبول کړ مونږ (حکم ستا، غواړو) مغفرت ستا ای ربه ځمونږ، او (خاص) تا ته دي درتلل (د هر چا).

**تفسير:** کله چې له لومړني آيت څخه دا خبره ښکاره شوه چې د هغو خبرو هم پوښتنه او حساب اخيستل کيږي؛ چې په زړونو کې ګرځي، نو أصحاب کرام رضي الله عنهم وويرېدل، او له دې آيت څخه داسې زيات متأثر شول، چې د هغه په شان له هيڅ يوه بل آيت څخه نه وو متأثر شوي، نو دوی پاك رسول صلی الله عليه وسلم ته شکايت ور ووړ، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ﴿وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا﴾ يعنې که څه سختي مو په نظر درځي، يا څه خپګان درپېښ شي، نو د حق تعالی د دې امر او ارشاد په منلو او تسليم کې لږ څه توقف او ډيل مه کوئ !، او د زړه له اخلاصه عرض ورته وکړئ چې ﴿سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا﴾ دوی د رسول الله صلی الله عليه وسلم امر او ارشاد سره سم کار وکړ، نو دغه کلمات د زړه د انشراح په توګه (طور) د دوی پر ژبو باندې جاري شول، چې د هغه مطلب دا

دې چې: مونږ ایمان لرونکي یو پر الله تعالی چې (واحد، احد، صمد، لا شریک له، ازلي، ابدي، د کمال په ټولو صفاتو موصوف، او له هر عیب او نقصان څخه پاک دی، او یواځې همدې د عبادت او بندګۍ مستحق دی)، او ایمان لرونکي یو پر ملائکو د الله چې: مقربې بندګانې د الله تعالی دي، نه ذکور دي، نه اناث، او د الله تعالی ډېرې مطیعې او حکم منونکي، او یوه «طرفة العین» هم د الله تعالی له عبادت، تسبیح، او تقدیس څخې نه غافلیږي، او ایمان لرونکي یو په ټولو کتابونو د الله تعالی چې دغه ټول کتابونه د الله تعالی له طرفه لیږل شوي دي، او ایمان لرونکي یو په رسولانو د الله چې ګرد په حق دي، او بیخي له دروغو معصوم دي، هر څه چې وایي او راوړي یې دي؛ هغه ټول له الله جل جلاله څخه دي، او فرق نه کوو مونږ په اصل د رسالت کې په منځ د هیڅ یو له دغو رسولانو، او د الله تعالی د حکم اطاعت مو وکړ، یعنې خپګان، خطره، او نورې ګردې خرخشې مو پرېښودې، او د الله تعالی ارشاد مو تعمیل کړ، او د هغه لپاره مو خپله تیاري او چمتوالی ښکاره کړ، حق تعالی دا خبره قبوله کړه، نو دا دواړه آیتونه نازل شول، اول: ﴿اٰمَنَ الرَّسُوْلُ﴾ الآیه – چې حق سبحانه وتعالی په ده کې د رسول صلی الله علیه وسلم او وروسته له هغه د ده د هغو اصحابو چې هغوی ته ذکر شوی تشویش پېښ شوی وو، او په دې سره یې دفع وشوه، د ایمان مدح او ستاینه (صفت) په تفصیل سره وفرمایله چې: له هغې څخه د هغوی زړونه ډاډه او اطمینان یې ترقي وکړي، او هغه پخوانی خطرې یې ورکې شي، او وروسته له دې نه په بل آیت کې چې ﴿لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا﴾ الآیه – دی فرمایي چې: له توان او مقدرت زیات هیچا ته تکلیف نه ورکاوه کیږي، او که د چا په زړه کې د ګناه خیال او کومه خطره وګرځي، خو په هغه باندې عمل نه کوي، نو پر ده باندې هیڅ ګناه نشته، او سهو او تېرواته یې هم معاف دي، لنډه یې دا چې صاف یې وفرمایل چې: له هغو خبرو څخې چې ځان ژغورل (ترې سخت دي)، لکه د خراب کار خیال، خطره، تېرواته، او سهو په هغو باندې هیڅ مؤاخذه نشته، هو په هغو خبرو باندې چې د بنده په واک (قبضه) او اختیار دي نیول کیږي، نو پخوانی آیت چې ورڅخه د اصحابو تشویش پیدا شوی وو، ښایي چې د هغه معنی هم د دویمې قاعدې سره سمه واخیستله شي، لکه چې هم داسې وشوه، او دغه یاده شوې خطره داسې بیخي له منځه لاړه، سبحان الله !.

فائده: له دې چې «نه کوو فرق په منځ د هیڅ رسول له رسولانو د الله کې» دا مطلب دی، چې مونږ د یهودانو او نصرانیانو په شان نه یو، چې هغوی یو رسول مني، او بل رسول نه مني.

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۭ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۭ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَآ اِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَى الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ وَاعْفُ عَنَّا ۪ وَاغْفِرْ لَنَا ۪ وَارْحَمْنَا ۪ اَنْتَ مَوْلٰىنَا فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ۝۲۸۶

تکلیف نه ورکوي، او نه مکلف کوي الله هیڅ نفس مګر (په اندازې د) طاقت د ده، (دی) دې نفس لره (ثواب د) هغه نیک عمل چې کړی (یې) دی، او (شته) په ده باندې (وبال د هغه بد عمل) چې کړی یې دی، ای ربه څمونږه ! مه نیسه مونږ که هېر کړو (حکم ستا)، یا په خطا سره وکړو (ګناه) ای ربه څمونږه !، او مه باروه پر مونږ باندې درووند بار ! لکه چې بار کړی وو تا دغه (بار) پر هغو کسانو چې وو پخوا له مونږ، ای رب څمونږه ! او مه باروه ته په مونږ باندې هغه (تکلیف) چې نه وي هیڅ طاقت مونږ ته په هغه سره، او محوه کړه (ګناهونه) له مونږه، او مغفرت وکړه مونږ ته، او رحم وکړه پر مونږ باندې، هم ته یې مولی (مددګار) څمونږ؛ نو مدد وکړه له مونږ سره ! پر قوم کافرانو باندې.

**تفسیر:** په هغو دعا وو او غوښتنو سره چې مونږ مامور شوي یو، دهغو مقصود دا دې چې: «بېشکه ته پر مونږ باندې د هر ډول حکومت حق او دعبادت استحقاق لرې، مگر ای ځمونږ ربه ! ښایي په خپل رحمت او کرم سره مونږ ته داسې حکم صادر کړې چې د هغه کول (تعمیل) پر مونږ باندې سخت او درونډ نه وي، او نه مونږ په تېروتلو او سهو باندې ونیسې !، او نه د پخوانیو امتونو په شان پر مونږ باندې شدید حکمونه نازل کړې ! او نه ځمونږ له طاقته ځنې زیات کوم حکم پر مونږ مقرر کړې، سره له هسې آسانی او سهولته که له مونږ ځنې کومه خطا او تقصیر څرگند شي له هغه ځنې را تېر شه !، او ومو بخښه ! او پر مونږ رحم وکړه»، په حدیث کې راغلي دي چې دا ګردې دعاوې ومنلی شوې، او په هغو سختیو پسې چې لویو اصحابو رضي الله تعالی عنهم ته ورپېښې شوې وې؛ اوس د الله تعالی په فضل او کرم او رحمت سره ځمونږ له هرې یوې سختې ځنې ډاډ، امن او سلامتي په برخه شوې ده، نو اوس مونږ د دومره یوې خبرې هیلمند (امیدوار) یو چې د پاک الله په فضل او کرم سره په کفارو باندې هم برئ ومومو، او پاک الله دې پر مشرکینو باندې هم مونږ ته برئ او غلبه را عنایت کړي !، که نه د دوی له لوري راز راز زحمتونه او تکالیف، دیني او دنیوي هر ډول زحمتونه راوړاندې کیږي، او له هغه صعوبت او سختی ځنې چې د الله تعالی په فضل او کرم سره ژغورلي (ساتلي) شوي یو، د کفارو د غلبې په حالت کې به بیا هم همغه اندېښنه او خرخشه (بد خیال) زمونږ د سودا او خپگان موجب ګرځي.

تمت سورة «البقرة» بفضل الله رب البرية، يا من لك الكبرياء في الدنيا والآخرة، أدخلنا بكرمك في عبادك الكرام البررة.



# سُورَةُ آلِ عِمْرَانَ

«د«آل عمران« سورت مدني دی، دوه سوه آیتونه او شل رکوع لري، په تلاوت کې دریم، او په نزول کې (۸۹) یم سورت دی، د «الأنفال» له سورت څخه وروسته نازل شوی دی

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمٓ ﴿١﴾ اللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلْحَيُّ ٱلْقَيُّومُ ﴿٢﴾

الله «چې دی» نشته هیڅوک لایق د عبادت مګر هم دې دی، چې تل ژوندی، په یو حال باقي، قایم، کامل، تدبیر والا دی.

تفسیر: د نجران د عیسایانو یوه شپیته کسیزه جرګه د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوه، په دوی کې درې تنو ډېر شهرت او امتیاز درلود: (۱) »عبد المسیح عاقب«، په امارت او سیادت کې، (۲) »أیهم السید«، په رأیه او تدبیر کې، (۳) »أبو حارثة بن علقمة«، په مذهبي علومو کې د نصرانیانو لوی عالم، »أبو حارثة« اصلا له مشهورې قبیلې (بني بکر بن وائل) سره تعلق درلود (لرلو)، بیا یوخ نصراني شو، د روم سلاطینو د ده د مذهبي صلابت، مجد او شرف د لیدلو له امله یې زیات تعظیم او تکریم کاوه، او ډېره مالي مرسته یې ورسره کوله، او یوه کلیسا یې ورته جوړه کړه، او د مذهبي چارو په اعلی منصب یې مأمور کړی وو، دا جرګه د رسالت په دربار کې په ډېر شان او شوکت سره حاضره شوه، او په متنازع فیها مسایلو کې یې له رسول صلی الله علیه وسلم سره خبرې وکړې، چې د هغو پوره تفصیل د محمد بن اسحاق رحمه الله په «سیرت» کې منقول دی.

د آل عمران د سورت اتیا، یا نوي لومړني آیتونه ددې واقعې په نسبت نازل شوي دي، عیسایانو لومړنی او بنیادي عقیده دا وه چې مسیح علیه السلام کټمټ (هو بهو) پخپله الله یا د الله ځوی، او یا له دریو معبودانو څنې دی (معاذ الله).

ددې سورت په لومړني آیت کې د پاک الله د خالص توحید ذکر راغلی دی، او د هغه د «حي» او «قیوم» کوم صفات چې ذکر شوي دي، په هغو سره د عیسایانو دعوی په ښکاره ډول باطله شوې ده، لکه چې څمونږ پاک رسول صلی الله علیه وسلم د مناظرې په دوران کې دوی ته وفرمایل: «آیا تاسې نه پوهېږئ چې الله تعالی حي «ژوندی» دی، او هغه لوي ذات ته مرګ هیڅکله نه پیښیږي، او پاک الله ګردو مخلوقاتو ته وجود ورکړی دی، او د دوی د ژوندانه اسباب یې ور پیدا کړي دي، او پخپل کامل قدرت سره د دوی ساتونکی او اداره کوونکی دی.

په خلاف د دې په عیسی علیه السلام باندې به د مرګ او فنا وار خامخا راتلونکی وي، او دا یوه ښکاره خبره ده؛ هغه څوک چې خپله هستي او ژوندون نشي ساتلی، نو د نورو مخلوقاتو ژوندون او هستي به په څه ډول سره وساتلی شي؟ هر کله چې هغو نصرانیانو، څمونږ د پاک رسول صلی الله علیه وسلم دا وینا واورېده، نو ګردو سره وویل: بېشکه رښتیا ده، ښایي چې دوی به دا غنیمت ګڼلی وي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپله اعتقاده سره سم د «عیسی یأتي علیه الفناء» سوال کوي، یعنې په عیسی علیه السلام باندې خامخا فنا راتلونکې ده، که یې مونږ ځواب په نفي ورکړو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم څمونږ د عیسایانو له عقیدې سره سم چې «ډېره موده کیږي، چې عیسی علیه السلام مړی شوی دی» مونږ په صریح ډول سره لا زیات ملزم، مفحم، او ساکتولی شي، نو ځکه یې مصلحت ونه لید چې په لفظي مناقشه کې خپل ځانونه وغورځوي.

او ممکن دی چې دا نصرانیان له هغو فرقو څني وي، چې له اسلامي عقیدې سره سم د مسیح علیه السلام له قتل او صلب څنې انکار کوي، او د جسماني رفعې قائلان وي، لکه چې «حافظ ابن تیمیة» په «الجواب الصحیح» کې او د «الفارق بین المخلوق والخالق» مصنف تصریح کړې ده، چې د شام او د مصر نصرانیان لومړی په عمومي ډول سره په همدې عقیده باندې وو، وروسته له ډېرې (زمانې) «پولوس» نومي د «صلب» د عقیدې اشاعت وکړ، بیا دا خیال له اروپا څخه مصر، شام او نورو ځایو ته ورسېد، په هر حال د نبي صلی الله علیه وسلم له لوري د «ان عیسی أتی علیه الفناء» په ځای «یأتي علیه الفناء» فرمایل، په داسې حال کې چې په لومړنی جملې سره د مسیح د ألوهیت تردید په ښه ډول سره کېږي، او په هغه موقع کې ښه ښکاره او مسکت جواب کېده، دا خبره دې ښکاره وي، چې ځمونږ پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم د الزام په وخت کې هم دا لازمه ونه ګڼله چې په مسیح علیه السلام باندې پخوا له مړ کېدو د مرګ اطلاق وکړي.

نَزَّلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

نازل کړی (ټوټه ټوټه لېږلی) دی په تا باندې کتاب (قرآن) په حقه (په رښتینو اخبارونو او واضحو دلائلو).

تفسیر: یعنې قرآن کریم چې عین حکمت، او له مصالحو سره موافق دی، په نهایت ښه وخت کې سره له رښتیا او انصاف راښکته شوی دی.

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝ مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ

حال دا چې تصدیق کوونکی دی د هغو (کتابونو) چې پخوا له ده نه دي، او نازل کړی (یو ځلې لېږلی) دی تورات او انجیل پخوا (له دې قرآنه) لپاره د هدایت د خلقو.

تفسیر: یعنې قرآن عظیم الشأن د پخوانیو أسماني کتابونو تصدیق کوونکی دی، او هغو پخوانیو کتابونو تورات، انجیل او نورو هم لا له پخوا څخه د پاک قرآن د نزول زېری خلقو ته ورکړی وو، او د ده د راوړونکي په لوري یې خلقو ته لارښوونه کوله، او د خپل وخت له اقتضا سره یې سم خلقو ته احکام او هدایات ورکول.

ګواکې دا یې راښکاره کړه چې د مسیح علیه السلام د «ألوهیت» یا د «ابنیت» عقیده په هیڅ یوه اسماني کتاب کې نه وه، ځکه چې د دین د اصولو په اعتبار ګرد اسماني کتابونه یو له بل سره متفق او متحد دي، او د مشرکانو د عقائدو تعلیمات په هغوی کې نشته.

وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۝

او نازل کړی یې دی فرقان «یعنې هسې کتابونه چې د حق او باطل بېلوونکي دي».

تفسیر: یعنې د هرې زمانې سره یې سم داسې شیان را نازل کړل، چې د حق او باطل، حلال او حرامو، دروغو او رښتیا په منځ کې فیصله کوونکي دي، په دې کې قرآن کریم، سماوي کتابونه، او د انبیاوو علیهم السلام معجزات ګرد سره داخل دي، او په دې لوري هم اشاره وشوه چې په هغو مسایلو کې چې یهودان او نصرانیان له پخوا راهیسې جګړې کوي، د دې اختلافاتو فیصله هم د همدې پاک قرآن په وسیله کېږي.

﴿إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿٤﴾﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي په آیاتونو د الله(چې قرآن او نور حقاني کتابونه دي) شته دوی لره عذاب سخت، او الله ډېر غالب (قوي د احکامو په انفاذ) څښتن (خاوند) د انتقام (او د سخت عذاب) دی.

**تفسیر:** یعنې داسې مجرمان؛ نه بې سزا پاتې کیږي، او نه دوی د ده له زبردست اقتدار څخه ځان ژغورلی (ساتلی) او نه ترې تښتېدلی شي، په دې کې هم د مسیح علیه السلام د الوهیت د ابطال په لوري یوه لطیفه اشاره وشوه، ولې هر کله چې پوره اقتدار او اختیار الله تعالی لره ثابت شو، نو ښکاره ده چې هغه په مسیح علیه السلام کې نه موندل کیږي، بلکه مسیح علیه السلام به د نصرانیانو د عقیدې په اساس څرنګه کولی شي چې نورو ته سزا ورکړي، هر کله چې پخپله ده سره له زیاتې تضرع او الحاح د ظالمانو له مُنګلو ځنې خپل ځان ونه شو ژغورلی (ساتلی)، نو بیا دې پخپله الله ! یا د الله ځوی ! څرنګه کېدی شي؟ ځوی هغه څوک کیدی شي، چې د پلار له نوعې څخه وي، نو ځکه ښایي چې د الله جل جلاله ځوی خامخا لکه الله جل جلاله غوندې وي، یوه عاجز مخلوق ته د مطلق قادر ځوی ویل؛ په حقیقت کې پر الله تعالی او عیسی علیه السلام دواړو باندې سخت عیب لګول دي، العیاذ بالله.

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَخْفَىٰ عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ ﴿٥﴾﴾

بېشکه الله؛ پټ نه دی په ده باندې هیڅ شی په ځمکه او په اسمان کې (د مخلوقاتو له ټولو احوالو).

**تفسیر:** یعنې همغسې چې د هغه اختیار او اقتدار کامل دی، علم یې هم محیط دی، همدې سره تنبیه ورکړه شوه چې مسیح علیه السلام هم دومره پوهیده چې الله تعالی ورښوولي وو، لکه چې څمونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ځواب کې هم د نجران نصرانیانو اقرار وکړ، او نن د مروّجو انجیلو له مخې هم ثابته ده.

﴿هُوَ الَّذِي يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ ۚ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦﴾﴾

الله هغه (ذات) دی چې جوړوي صورتونه ستاسې په رحمو (د میندو) کې، په هغه ډول چې اراده وکړي (د جوړولو یې)، نشته بل هیڅ لایق د عبادت مګر هم دې دی، ډېر غالب (قوي د احکامو په انفاذ) ښه تدبیر والا (چې هر کار په حکمت او مصلحت سره کوي).

**تفسیر:** یعنې الله تعالی له خپل علم، حکمت، کامل قدرت او کمال سره سم هر څنګه چې یې اراده وکړه، همغسې یې د مور په نس کې ستاسې صورت جوړ کړ، او جوړوي یې، نارینه یا ښځه، ښایسته یا بدرنګه، او څرنګه چې یې اراده وه، پیدا کوي یې له یوه څاڅکي اوبو ځنې، په څو ډولو تحولاتو یې د بنیادم ښه (شکل) راباسي، او هغه ته پوهه او عقل ورکوي، هغه ذات چې قدرت او صنعت یې داسې وي؛ نو د هغه په علم کې به څه نقصان وي؟ یا هر هغه انسان چې ده پخپله د خپلې مور د ګېډې په څو تیارو کې هستوګنه کړې وي، او د نورو وړوکیو غوندې خوري، او څښي، او له وړاندې او وروسته ځنې اودس ماتي ته کښیني، نو داسې یو شخص ته به د پاک الله شریک یا ځوی یا لمسی ویل څرنګه وي؟ ﴿كَبُرَتْ كَلِمَةً تَخْرُجُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ ۚ إِنْ يَقُولُونَ إِلَّا كَذِبًا﴾ عیسایانو به داسې پوښتنې کولې: «هر کله چې مسیح علیه السلام په ښکاره ډول پلار نه لري، نو پرته له الله تعالی به یې څوک پلار وي؟» نو په ﴿يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ كَيْفَ يَشَاءُ﴾ کې ددې خبرې ځواب هم وشو، یعنې الله تعالی قدرت لري چې په رحم کې، چې په هر ډول سره یې اراده وي، د انسان شکل تیاروي، عام له دې نه چې د مور او پلار له یو ځای کېدلو څخه وي، یا که یوازې د مور ځنې، نو ځکه یې

وروسته له دې نه وفرمايل: ﴿هُوَالْعَزِيزُالْحَكِيمُ﴾ يعني الله تعالى هسې لوى زورور ذات دى، چې د هغه قدرت هيڅ څوک نشي محدودولې، او د داسې يوه حكمت څښتن (خاوند) دى، چې هر چېرې هر شى مناسب وګڼي، هغه كوي، «بي بي حواء» يې بې موره، او مسيح عليه السلام يې بې پلاره، او آدم عليه السلام يې بې له موره او پلاره پيدا كړل، د الله تعالى په حكمتونو باندې څوک احاطه كولى شي؟

هُوَالَّذِيٓ أَنزَلَ عَلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبَ مِنۡهُ ءَايَٰتٞ مُّحۡكَمَٰتٌ هُنَّ أُمُّ ٱلۡكِتَٰبِ وَأُخَرُ مُتَشَٰبِهَٰتٞۖ فَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمۡ زَيۡغٞ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَٰبَهَ مِنۡهُ ٱبۡتِغَآءَ ٱلۡفِتۡنَةِ وَٱبۡتِغَآءَ تَأۡوِيلِهِۦۖ

الله هغه (ذات) دى چې نازل كړى (لېږلى) يې دى پر تا باندې كتاب (قرآن)، چې ځينې له ده نه آيات محكمات دي (چې معاني يې ښكاره دي)، دا (محكم آيات) اصل د كتاب دي (چې د شرعيه وو احكامومبنى دي) او نور (ځينې آيات) متشابهات دي (چې معنى يې معلومه او معينه نه ده)، نو هر چې هغه كسان دي چې په زړونو د دوى كې كوږوالى دى؛ پس پيروي كوي دوى د هغو (كلماتو) چې متشابه وي له دې (قرآنه)، لپاره د طلب د فتنې (او ګمراهي) او لپاره د طلب د معنى د هغو.

تفسير: يعني هغه كسان چې د هغوى په زړونو كې له حق څخه باطل خوا ته ميلان دى، لكه بدعتيان او زنديقان، نو هغوى په قرآن كريم كې په متشابه ځايونو پسې ګرځي، په كوم كې چې دوى خپل هغه خطا احتمال ويني؛ چې د دوى د شبهو او د خطا عقيدې لپاره دليل شي، لكه «كلمة الله» د عيسى عليه السلام په هكله، او همدارنګه «روح منه» د هغه په هكله، او حروف مقطعات د ځينو علماوو په نظر، او يا هم د الله تعالى د ذات او د صفاتو د كيفيت پېژندل، چې ددغه كيفيت علم د الله تعالى څخه پرته بل چا ته نشته، ځكه د دوى اصلي هدف ګمراهي او د فتنې لټول دي.

او هر چې د الله تعالى صفات دي، لكه «يد الله» يعني د الله تعالى لاس، «وجه الله» يعني د الله تعالى مخ، د الله تعالى استواء يعنې په عرش بلكه په ټولو مخلوقاتو اوچتوالى او پورته والى، په قيامت كې د قضاء ميدان ته دالله تعالى راتلل، او د خلكو تر منځ فيصلې كول، دا او داسې نور هغه صفتونه دي چې الله تعالى په خپل كتاب قرآن شريف او يا هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم په صحيحو احاديثو كې د الله تعالى لپاره ياد كړي وي نو مونږ ايمان لرو چې هغه دالله تعالى صفتونه دي، معنى يې ښكاره ده، هيڅ نوع اشكال نه لري، چې «يد الله» يعنې د الله تعالى لاس، او «وجه الله» يعنې د الله تعالى مخ، او داسې نور، خو څرنګه چې د الله تعالى له شان سره لايق او مناسب وي، ځكه حتى د مخلوقاتو د لاسونو، مخونو، سترګو، قوتونو، او نورو صفاتو تر منځ سره توپير شته، او سره يو شان نه دي، نو الله تعالى چې د ټولو مخلوقاتو خالق او پيدا كوونكى دى، په طريق اولى سره په ذات او صفاتو كې د مخلوق د ذات او صفاتو څخه جلا او له هغوى څخه توپير لري، نو د الله تعالى سره په ذات او صفاتو كې هيڅ شى يو شان نه دي، نو مونږ په كې نه تمثيل كوو، نه تحريف، نه تعطيل، او نه تأويل.

تمثيل دېته وايي چې د الله تعالى سره په ذات او يا په صفاتو كې بل څوک يو شان وګڼل شي.

تحريف دېته وايي چې د الله تعالى د صفاتو لفظ يا معنى له خپل اصل حقيقت څخه واړول شي.

تعطيل: دېته وايي چې په قرآنكريم او صحيحو أحاديثو كې د الله تعالى لپاره ثابت شوي نومونه يا صفتونه نفي او له هغه څخه انكار وشي.

تكييف: دېته وايي چې د الله تعالى د ذات او يا دصفاتو كيفيت بيان كړى شي، او دا ځكه چې د الله تعالى ذات مخلوقاتو نه دى ليدلى، او نه د هغه په شان بل څوک شته؛ چې قياس يې ورباندې وشي، او نه هم الله او رسول صلى الله عليه وسلم دغه كيفيت بيان كړى دى، چې مونږ پرې اعتماد وكړو.

تأويل: دېته وايي چې د الله تعالی د صفاتو نصوص له خپلې صحيح معنی څخه ديو نوع شبهی له کبله بلې بدلې معنا ته واړول شي.

﴿وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلَّا اللَّهُ﴾

حال دا چې نه پوهيږي په (حقيقي معنی او) مطلب د هغه مګر الله «چې دغه متشابهات هم لکه نور ټول شيان ور معلوم وي).

تفسير: يعنې ددې متشابهاتو حقيقي کنهه او کيفيت بل هيڅ چا ته معلوم نه دی، مګر يواځې الله جل جلاله ته دا هر څه ښکاره دي، ځکه چې دهغه لفظ مراد چې ظاهر الدلالت نه وي، هغه پرته له متکلمه بل هيچا ته معلوم نه وي.

﴿وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ۝﴾

او هغه کسان چې پاخه دي په علم کې وايي دوی چې: ايمان راوړی دی مونږ په دې (متشابه، په مثل د ايمان څمونږ په محکم باندې چې دواړه حق دي، ځکه) دا ټول (محکم او متشابه) له طرفه د رب څمونږ دي، او پند نه اخلي (په دې) مګر (خو پند اخلي) خاوندان د عقلونو (خالصو).

تفسير: هر کله چې د نجران نصرانيان له ګردو دلائلو څخې عاجز شول، نو د معارضې په ډول يې وويل: «آخر تاسې خو مسيح «کلمة الله» او «روح الله» ګنئ، نو څمونږ د مدعی داثبات لپاره همدومره الفاظ کافي دي»، دلته د هغې تحقيقي ځواب د يو عام اصل، قاعدی او ضابطې په صورت ورکړ شوی دی، چې د هغه له پوهېدلو څخې وروسته د زرګونو منازعاتو او مناقشاتو خاتمه کېدی شي، داسې وپوهيږئ چې نه يواځې په عظيم الشأن قرآن کې بلکه په ټولو اسماني کتابونو کې دوه ډوله آيتونه شته:

(۱): هغه آيتونه دي چې مراد يې ښکاره او ټاکلی (مقرر) وي، يعنې د عبادت، لغت، ترکيب، او نورو په لحاظ د هغه په الفاظو کې څه اجمال او ابهام نه وي، او نه يې عبارت د څو معناګانو احتمال لري، او نه يې هغه مدلول چې ورڅخه پوهېدلی شوی دی له عامو مسلّمو قواعدو څخې چپ وي، نو داسې آيتونو ته (محکمات) وايي، او په حقيقت کې د کتاب د ګردو تعليماتو او احکامو بېخ او د اصولو اصل همدا محکمات آيتونه دي.

(۲) د «متشابهاتو» آيتونه دي، چې د هغو مراد ښکاره نه دی، او بايد چې د متشابهاتو آيتونه دې محکماتو آيتونو ته راجع کړل شي !، او ودې کتل شي چې هغه معناګانې چې لـه محکماتـو څخې مخالفې وي، د هغو دې بيخي نفي وکړه شي، او د متکلم مقصد همغه شی واخيستل شي چې د محکماتو له آيتونو څخې مخالف نه وي، او که سره له اجتهاده او ډېر کوښښ د متکلم مراد په پوره ډول سره متعين نه کړ شي، نو د هر شي د پوهيدلو دعوی دې پرېښوده شي !، او له حده څخې دې وړاندې تېری ونه کړل شي !، ځکه چې د علم لړوالی او د استعداد د قصور له امله په ډېرو حقايقو باندې څمونږ فکر نشي رسېدی، او څمونږ عقل د هغه له پوهيدلو څخې قاصر دی، او دا دې هم په همغه فهرست کې شامل کړل شي !، خبردار چې داسې تأويلات او وړاندې وروستوالی دې ونه کړل شي ! چې د دين د مسلّمو اصولو او محکمو آيتونو څخې مخالف وي.

دقرآن چې څوک له ځانه کړي تأويل *** چې دشرعې پکې نه وي هيڅ دليل

په مرض د ګمراهی سره عليل دی *** په عقبی به يې رب سپک کړي ډېر ذليل

مثلا قرآن حکيم د مسيح عليه السلام په نسبت تصريح فرمايلې ده: ﴿إِنْ هُوَ إِلَّا عَبْدٌ أَنْعَمْنَا عَلَيْهِ﴾ يا ﴿إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ﴾ الآيه - يا ﴿ذَٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ قَوْلَ الْحَقِّ الَّذِي فِيهِ يَمْتَرُونَ﴾ يا ﴿مَا كَانَ لِلَّهِ أَن يَتَّخِذَ مِن وَلَدٍ سُبْحَانَهُ﴾ او ځای په ځای

يې د هغه د الوهيت او ابنيت ترديد کړی دی، اوس که يو سړی له دې ګردو محکماتو آياتونو څخه سترګې پټې کړي، او په ﴿وَكَلِمَتُهٗٓ اَلْقٰهَآ اِلٰى مَرْيَمَ وَرُوْحٌ مِّنْهُ﴾ او نورو متشابهاتو پسې منډې وهي، او د دغو معنی چې له محکماتو سره سمه وي؛ پرېږدي، او هسې يوه سطحي معنی غوره کوي، چې د کتاب الله له عمومي تصريحاتو او متواترو بياناتو څخه منافي وي، نو دا که کاږه تلل او سرزوري نه ده، نو څه ده؟ ځينې سخت زړي خو غواړي چې دا راز مغالطې واچوي، او خلق د ګمراهۍ په کنده کې نسکور کړي، او ځينې متزلزل او سست عقيده کسان له داسې متشابهاتو څخه له خپلې رايې او غوښتنې سره سم تأويلات کوي، او غواړي چې په ډېر کوښښ او سعي سره څه نا څه مطلب ترې راواخلي، حال دا چې د هغوی صحيح مطلب خو يواځې الله تعالی ته معلوم دی، او همغه پخپل فضل او کرم سره هر چا ته چې هر څومره اراده وکړي همغومره ورښيي، هغه کسان چې مضبوط علم لري، دوی محکمات او متشابهات دواړه حق ګڼي، او يقين لري چې دا دواړه له يوې چينې راوتلي دي، او په دوی کې د تناقض هيڅ امکانات نشته، نو دا مضبوط عالمان هغه متشابهات محکماتو ته راجع کوي، او د هغو له مخې په مطلب يې ځان پوهوي، او هغه برخه چې د دوی د پوهې له دائرې څخه وتلې وي، د هغې معنی او تأويل الله تعالی ته پرېږدي، او وايي چې: د دې په معنی باندې پاک الله ښه پوهيږي، ځمونږ کار هم دا دی چې ايمان پرې راوړو.

کوم اجمال چې په کلام کې عارضيږي

خپل قائل پرې له هر چا نه ښه پوهيږي.

رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ ⑧

(وايي دغه راسخون) ای ربه ځمونږه ! مه کږوه ! زړونه ځمونږ وروسته له دې نه چې په سمه صافه لاره دې برابر کړي يو، او وبخښه (عنايت کړه) مونږ ته له نزده خپله رحمت، بېشکه ته همدا ته ډېر بخښونکی يې (د نعمت او رحمت).

تفسير: يعنې «راسخين في العلم» په خپل ايماني قوت او علمي کمالاتو باندې نه مغرور او نه ډاډه کيږي، بلکه تل له حق سبحانه وتعالی څخه د لا زيات استقامت او د لا زيات فضل او عنايت غوښتونکي دي، چې ګټلې پانګه (سرمايه) يې له لاسه ضايع نشي، او الله دې نه کړي چې د زړونو له سمېدلو څخه وروسته بيا دوی کاږه شي، په حديث شريف کې راغلي دي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم خپل امت ته د تعليم په توګه زياتره داسې دعاوې کولې «يا مقلب القلوب، ثبت قلبي على دينك»: ای اړونکيه د زړونو ! ثابت وساته زړه زما پر دين خپل !.

رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيْهِ ۚ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ⑨

ای ربه ځمونږه ! بېشکه ته يو ځای کوونکی د (ټولو) مخلوقاتو يې (په بعث سره په محشر کې) لپاره د (حساب د هغې) ورځې، چې نشته هيڅ شك شبهه په (راتلو د) د هغې کې، بېشکه چې الله نه کوي مخالفت له وعدې «خپلې» نه.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ هُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ⑩

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له سره به دفعه نه کړي له دوی څخه مالونه د دوی او نه اولاد د دوی؛ له (عذابه د) الله نه هيڅ شی (نه لږ، نه ډېر، نه په دنيا نه په عقبې)، او دا کسان همدوی دي خس د اور (د دوزخ).

**تفسير:** د قيامت له ذکر سره يې د کافرانو انجام هم راوښود، چې هيڅ شی دوی په دنيا او آخرت کې د الله تعالی له عذاب څخه نشي ژغورلی (ساتلی)، لکه چې د دې سورت په اوله کې وليکل شو، په دې آيتونو کې اصلي خطاب د نجران جرګې ته دی، چې ښايي هغې ته د نصرانيانو د مذهب او د نصرانيانو د قوم لوی نماينده وويل شي.

كَدَأْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۱﴾

(حال د دوی داسې دی) لکه حال (عادت) د تابعانو د فرعون او (لکه حال عادت) د هغو کسانو چې پخوا له دوی څخه وو، (لکه عاديان او ثموديان) چې نسبت د دروغو به يې کاوه آيتونو زمونږ ته، پس ونيول دوی لره الله (په عذاب مهلک سره) په سبب د ګناهونو د دوی، او الله سخت دی عذاب (د ده، يعنې پر کافرانو يې عذاب سخت او عقاب يې تل دی).

**تفسير:** يعنې د هيڅا پلمې (منصوبې) او بهانې نشي چلېدی، او لکه چې هغوی نيولي شوي دي، تاسې هم د الله تعالی له نيولو څخه ځان نشئ ژغورلی، او نيولي کيږئ.

قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ؕ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۲﴾

ووايه (ای محمده !) هغو کسانو ته چې کافران شوي دي: ژر به مغلوب کړی شئ تاسې (په وژلو يا شړلو سره په دنيا کې)، او جمع به کړی شئ تاسې (شړلی به شئ په عقبی کې) طرف د دوزخ ته، او بد ځای د هستوګنې دی (دغه دوزخ).

**تفسير:** يعنې هغه وخت راتلونکی دی، چې ژر به تاسې ګرد يهودان، نصرانيان او مشرکين د الله تعالی د لښکرو په مخ کې مغلوب شئ، او خپله وسله به ور واچوئ، دا خو د دنيا سپکتيا ده، د آخرت هغه خورا سور ځای چې تاسې ته تيار شوی دی؛ هغه خو بېل دی.

په ځينو روايتونو کې دي، چې د بدر له بري څخه وروسته رسول اکرم صلی الله عليه وسلم يهودانو ته وفرمايل: «تاسې هم حق دين ومنئ، که نه ستاسې حال به هم همغسې شي لکه چې د قريشو شو !» دوی وويل: «ای محمده ! تاسې په دې باندې مه تېروځئ چې د قريشو په خو بې تجربو سړيو باندې مو بری موندلی دی، که ستاسې مقابله له مونږ سره وشي نو هلته به وپوهيږئ، چې مونږ څرنګه جنګيالیان يو؟ نو په دې مناسبت دا آيتونه نازل شول.

ځيني وايي چې: د بدر د بري ليدلو په اثر ځيني يهودان د تصديق لوري ته متمايل شول، خو ځينو نورو دوی ته وويل: ګورئ تلوار مه کوئ ! او صبر وکړئ ! چې وروسته له دې نه څه پېښيږي؟، په دوهم کال کې د احد د عارضي ماتې له ليدلو څخه د دوی زړونه لا پسې سخت شول، او حوصله يې زياته شوه، تر دې چې پخپل تړون باندې هم ونه درېدل، او د مسلمانانو د جنګ لپاره يې تياری وکړ، کعب بن أشرف له شپېتو تنو سپرو (سورو) سره مکې معظمې ته لاړ، او د ابو سفيان او د قريشو د نورو غټانو سره ملګري شول، او ويې ويل: مونږ له تاسې سره متحد يو، او ښايي چې ګرد سره يو محاذ قايم کړو، او له محمد صلی الله عليه وسلم سره وجنګيږو !، نو په دې بـاره کې دا آيت نـازل شو، والله أعلم.

په هر حال ! له لږو ورځو څخه وروسته الله تعالی دا راوښووله، چې په «جزيرة العرب» کې به د مشرکانو نوم پاتې نشي، بني قريظه عهد ماتوونکي يهودان په خپله سزا ورسېدل، بني نضير له مدينې منورې څخه وشړل شول، د نجران نصاری داسې خوار او سپک شول، چې کلنی «جزيه» ورکول يې ومنل، او نړدې تر زرو کلونو پورې د دنيا ډېرو مغرورو او خورا (ډېر) متکبرو قومونو د مسلمانانو په تهذيب، تعليم، او ترقي اعتراف کاوه، فالحمد لله علی ذلک.

قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ؕ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَهُمْ مِّثْلَيْهِمْ رَاْيَ الْعَيْنِ ؕ وَاللّٰهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِي الْاَبْصَارِ ﴿۱۳﴾

په تحقیق سره دی تاسې ته لوی عبرت (نمونه ای ناظرینو !) په هغو دوو فرقو کې چې سره مخامخ شولې (په «بدر» کې لپاره د جنګ)، یوه فرقه داسې وه چې جنګ یې کاوه په لاره د الله کې، او بله فرقه داسې وه چې کافره وه، لیدل به دوی هغوی لره دوه چنده د هغوی، په لیدلو د سترګو سره، او الله قوت ورکوي په نصرت (مرستې، مدد) خپل سره هر چا ته چې اراده وکړي (د نصرت)، بېشکه په دې (زیات او کم لیدلو) کې خامخا عبرت (پند) دی لپاره د خاوندانو د بصیرت.

تفسیر: د بدر په غزا کې د کافرانو شمېر نږدې زر ته وو، چې له دوی سره اوه سوه اوښان، سل آسونه هم وو، په بل لوري کې مجاهدین له درې سوو څخه لږ زیات وو، چې له هغوی سره اویا اوښان، دوه آسونه، شپږ زغرې، اته توري یا چړې وې، او یوه ننداره (تماشه) دا وه، چې هر یوه لښکر ته به بل مخامخ لښکر دوه چنده په نظر ورته، چې د هغه نتیجه داسې شوه؛ چې کافرانو په زړونو د مسلمانانو د دې ډېروالي له تصوره وېره ور ولوېده، او مسلمانانو ته د کافرانو له دې دوه چنده شمېر څخه په پاک الله باندې لا ډاډینه (تسلي) او اعتماد پیدا شو، او د ده په لوري متوجه، او په پوره توکل، صبر، او استقلال سره یې د الله تعالی په دې وعدې باندې چې ﴿فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ﴾ ده، اعتقاد او اعتماد وو، او د بري او نصر هیلمند (امید کوونکي) وو، که پوره شمېر دوی ته ورښکاره کېدی، چې درې چنده وو، نو ممکن وو چې وېره به دوی ته پیښېده، او دغو دواړو ډلو ته دوه چنده ښکارېدل په ځینو احوالو کې وو، که نه په ځینو احوالو کې هر یوه لښکر ته بل مخامخ لښکر لږ په نظر ورته، لکه چې د «الأنفال» په سورت کې به راشي.

په هر حال د هغسې یوې لږې، او بې سرو سامان ډلې، د داسې یوې مضبوطې او پیاوړې (محکمې) ډلې په مقابل کې، دهغې پخوانۍ وینا سره سم چې په مکې معظمې کې شوې وه، دا رنګ بریالي (کامیاب) کېدل د بصیرت او عقل خاوندانو ته یوه لویه عبرتناکه واقعه، او ښه نمونه ده.

زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ الشَّهَوٰتِ مِنَ النِّسَآءِ

ښایسته کړی شوي دي خلقو ته محبت (مینه) د مرغوبو خوندورو شیانو چې ښځې دي.

تفسیر: یعني کله چې سړی له هغو سره علاقمند (تعلق لرونکی)، او له الله تعالی څخه غافل شي، نو بناء پر دې په حدیث کې راغلي دي: «ما ترکت بعدي فتنة أضر علی الرجال من النساء»: «ما نه ده پرېښې وروسته له خپله ځانه یوه فتنه چې زیاته ضرر رسوونکې وي نارینه وو ته له ښځو څخه».

هو ! که له ښځو څخه مقصود عفت او د اولادو کثرت وي، نو مذموم نه – بلکه مطلوب او مندوب دي، لکه چې رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «د دنیا ډېر ښه متاع هغه ښه ښځه ده، چې که هغې ته وګورې؛ خوښ شې، که حکم ورته وکړې؛ حکم دې ومني، که ور څخه غایب شې؛ نو مال دې او خپل عصمت او عفت په ښه شان سره ساتي».

همداسې هومره شیان چې وروسته له دې نه د دنیا د متاع په سلسله کې یاد شوي دي، د هغو ګردو ښه والی او بدوالی دنیت او عمل په تفاوت سره متفاوت کیږي، خو څرنګه چې په دنیا کې هسې افراد ډېر دي، چې د عیش او عشرت په سازونو او سامانونو کې ډوب پراته دي، او الله تعالی او خپل انجام هیروي، نو ځکه د «زین للناس» کلام په ظاهر کې عام راوړل شوی دی.

وَالْبَنِيْنَ وَالْقَنَاطِيْرِ الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ

او ځامن دي او ډېر مالونه چې راټول کړی شوي دي له سرو زرو نه، او سپينو زرو نه، او آسونو نه؛ چې نښان داره (يا ښايسته) کړی شوي وي.

تفسير: يعنې هغه آسونه چې لمبر يا نښان پرې اېښود شوی وي، يا هغه ښايسته او ښکلي اسونه چې په لاسونو، پښو، او تندې باندې يې نښې وي، يا هغه آسونه چې په څرځای (چراګاه) ورشو کې د څر لپاره خوشې پرېښودل شوي دي.

وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ۗ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿۱۴﴾

او نور چارپايان (لکه اوښ، غويی، پسه) او کښت (يا مزرعه) دي، دغه (۶ واړه شهوتونه) فايده اخيستل د ژوندون د دنيا دي، او (خاص) دالله په نزد دی ښه ځای د ورتللو(چې جنت دی).

تفسير: يعنې ابدي فلاح له دې شيانو څخه په لاس نه راځي، يواځې د دنيا د څو ورځو موقتي ګټه ترې اخيستل کيږي، که ډک له برې او کاميابی مستقل او ښه ځای غواړې؛ نو هغه د الله تعالی سره موندل کيږي، نو تل د الله جل جلاله د خوښې او د قرب د حصول په فکر کې ووسئ ! په وروستني آيت کې دا راښيي چې هغه ښه ځای کوم دی، او هغه کومو خلقو ته ور رسيږي؟

قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ۗ لِلَّذِيْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ

ووايه (ای‌محمده ! دوی ته) آيا خبر درکړم تاسې ته په بهتر (څيز) له.دغو (۶ واړو دنيوي خوندونو) نه؟، (شته) لپاره د هغو کسانو چې متقيان دي (د الله احکام تعميلوي) په نزد د رب د دوی؛ جنتونه چې بهيږي به لاندې له (ماڼيو او ونو د) هغوی ويالې، چې تل به وي (دوی) په دې (جنتونو) کې، او (دوی لپاره) ښځې به وي ښې پاکې.

تفسير: يعنې له هر راز صوري او معنوي نجاستونو او ګندګيو څخه به «چې دنيوي ښځې طبعا يا أخلاقا په هغو ککړې او ناولې کيږي» پاکې او صافې وي.

وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ۗ

او رضامندي (لويه به وي له کريمه ربه دوی ته) له جانبه د الله.

تفسير: آيا له دغه څخه به بل کوم لوی نعمت او کوم ښه احسان او انعام وي؟ نه ! په حقيقت کې جنت د دې لپاره مطلوب او مرغوب دی، چې د رضا محل، او د الله د ليدلو ځای دی.

وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ بِالْعِبَادِ ﴿۱۵﴾ ج

او الله ښه ليدونکی دی دبندګانو (نو هر چا ته به د خپل عمل جزا ورکړي).

تفسير: په حديث کې راغلي دي چې رسول الله مبارک فرمايي: «کله چې الله تعالی ته کوم بنده محبوب وي، نو دې له دنيا څخه داسې لرې ساتي، او ترې پرهېزوي يې، لکه چې تاسې خپل کوم ناروغه له مضرو اوبو او ناوړه (ګنده) خوړو څخه پرهېزوئ».

اَلَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اِنَّنَآ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۶﴾

هغه (متقیان) چې وايي: «ای ربه څمونږه ! بېشکه مونږ ایمان راوړی دی (په ټولو مؤمن به شیانو)، نو مغفرت وکړه مونږ ته د ګناهونو څمونږ، او وساته مونږ له عذابه د اور (د دوزخ)».

تفسیر: معلومه شوه چې د ګناه د مغفرت لپاره ایمان راوړل شرط دي.

اَلصّٰبِرِيْنَ وَالصّٰدِقِيْنَ وَالْقٰنِتِيْنَ وَالْمُنْفِقِيْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِيْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿۱۷﴾

(هسې متقیان چې) صبر کوونکي دي، (په طاعت او مصیبت او له معصیت څخه) او صادقان دي (رښتیني دي په ایمان) او په ځای راوړنکي دي د حکم (د الله) او خیرات ورکوونکي دي په رضا د (الله) او مغفـرت غوښتونکـي دي په آخر د شپو کې.

تفسیر: یعني د الله تعالی په لاره کې لوی لوی ربړونه (مصیبتونه) او تکلیفونه په ځان اخلي، او د الله تعالی د احکامو په منلو کې ټینګ ولاړ وي، او له ګناه او معصیت څنې تل ځان ژغوري (ساتي)، په ژبه، نیت، زړه، او په معامله کې بیخي رښتیني وي، په پوره تسلیم او انقیاد سره د الله تعالی ګرد احکام په ځای کوي، او د الله تعالی له خوا ورکړی شوی مال د هغه په ښوونې سره لازمو ځایو کې صرفوي، او د شپې په آخره برخه کې (چې د طمأنینت او اجابت وخت دی، او په هغه وخت کې له خوبه پاڅېدل کوم آسان کار نه دی) له خپل رب څنې د خپلو ګناهونو او تقصیراتو مغفرت غواړي، لکه چې د ۲۶ جزء د (الذاریات) د لومړی رکوع په ۱۷ آیت کې راغلي دي: ﴿كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ﴾ یعنې د شپې زیاته برخه په عبادت کې تېروي، او د سبا ختو نه مخکې وخت کې استغفار وایي چې؛ ای الله ! څمونږ هغه تقصیرات او نیمګړتیاوې چې په عبادت کې رانه شوي دي، پخپل فضل او کرم سره یې وبښه !.

شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ

شاهدي ادا کړې ده الله (د وحدانیت) په دې شان چې نشته هیڅ مستحق د عبادت مګر هم دې دی.

تفسیر: په ابتداء کې د نجران له نصرانیانو سره مخاطبه وه، او په ډېر لطیف صورت سره یې د مسیح علیه السلام د ألوهیت د عقیدې ابطال او د خالص توحید اعلان او د ایمان راوړلو ترغیب یې ورکړ، په منځ کې یې د هغو موانعو ذکر وفرمایه چې د حق له وضاحت سره انسان د ایمان له شرفه محروم او بې برخې کوي، چې مال، اولاد، او د عیش او عشرت نور ساز او سامان دی.

په دې آیتونو کې د مؤمنانو د صفاتو له بیانولو څخه وروسته بیا د توحید او نورو اصلي مضمونونو په لوري رجوع وشوه، یعنې د خالص توحید په منلو کې څه تردد او اندېښنه کېدی نه شي ځکه چې په خپله الله تعالی په خپلو کتابونو کې پرله پسې د همدې مضمون په حقانیت باندې شاهدي لولي، او د هغه د فعلي کتاب (د کائناتو پاڼی) هر یوه پاڼه، بلکه هره یوه نقطه شاهدي ورکوي، چې له رب العالمین جل وعلا شأنه څخه پرته بل هیڅوک د عبادت وړ (لایق) نه شي کېدی.

«وفي كل شيء له آية ***** تدل على أنه واحد»

«په هر شي کې دی دلیل، چې الله دی بې مثیل».

﴿سَنُرِيْهِمْ اٰيٰتِنَا فِي الْاٰفَاقِ وَفِيْٓ اَنْفُسِهِمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَهُمْ اَنَّهُ الْحَقُّ ؕ اَوَلَمْ يَكْفِ بِرَبِّكَ اَنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدٌ﴾ (۲۵م جزء، د حم السجده ۶ مه رکوع، ۵۳م آیت).

وَالْمَلٰٓئِكَةُ

او (شاهدي اداء کړې ده) پرښتو (د وحدانيت په اقرار سره).

**تفسير:** ښکاره ده چې د پرښتو شاهدي د الله جل جلاله له شاهدي څخه هيڅکله مخالفه کېدی نشي، پرښته خو د هغه مخلوق نوم دی، چې د صدق او د حق له لارې څخه غاړه نشي غړولی، لکه چې د پرښتو ټولې تسبيح او ګرد تمجيد په عمومي ډول د باري تعالی په توحيد او تفريد باندې مشتمل دي.

وَاُولُوا الْعِلْمِ

او (شاهدي اداء کړې ده) خاوندانو د علم (له انبياوو او مؤمنانو د وحدانيت په اعتقاد سره).

**تفسير:** علم والا په هره زمانه کې د توحيد شهادت ورکوي، او نن ورځ په عمومي ډول سره د توحيد په خلاف يو لفظ ويل، له مطلق جهل سره مرادف ګڼل کيږي، مشرکان هم په خپلو زړونو کې د توحيد اصول مني، او علمي اصول هم د شرك د عقائدو مؤيد نه دي، (له دې نه د علم فضيلت، او د پوهنې په لوري تشويق او رغبت ثابت شو، نو ښايي چې هر مؤمن د علم او معرفت په تحصيل کې بيړه (تلوار) او کوښښ وکړي !).

قَآئِمًا بِالْقِسْطِ ۚ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿١٨﴾

په دې حال کې چې ثابت دی (الله) په عدل سره، نشته هيڅ مستحق د عبادت مګر همدی دی، ښه غالب (قوي په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

**تفسير:** د عدل او انصاف کولو لپاره دوه خبرې ضروري دي.

(۱) دا چې منصف داسې زورور غالب وي، چې هيڅوك د هغه له فيصلې نه سر ونشي غړولی.

(۲) حکيم وي، چې په حکمت او پوهې سره د هر شي تدقيق او څېړنه (تحقيق) له هرې خوا څخه وکړلی شي، او په پوره دقت او قوت سره وکړلی شي، چې خپله فيصله صادره کړي، او هيڅ يو نا مناسب او بې موقع حکم ونه کړي، څرنګه چې حق سبحانه وتعالی عزيز او حکيم دی، نو ځکه د هغه په مطلق عدالت هيڅ يوه شبهه نشي واردېدې.

غالبا په دې لفظ د «قائما بالقسط» سره د نصرانيانو د کفارې مسئله هم ترديده شوه، په رښتيا سره دا څه عدل او انصاف دی، چې د نړۍ جرمونه يواځې پر يوه سړي باندې بار کړل شي، او همغه يو مجرم چې سزا ومومي، نور به ټول مجرمان د تل لپاره پاك او بري شي، حال دا چې د عادل او حکيم الله تعالی لوی دربار له هسې ګستاخی او سپين سترګی څخه خورا (ډېر) لوړ دی.

اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۗ

بېشکه (غوره او مقبول) دين په نزد د الله دين د اسلام (يعني محمدي شريعت) دی.

**تفسير:** د «اسلام» اصلي معنی ځان سپارل او غاړه کېښودل دي، اسلام ته هم له همدې امله «اسلام» ويلی شي، چې هر مسلمان بېخي خپل ځان الله تعالی ته سپاري، او د ده ګردو احکامو ته غاړه ږدي، او په وحدانيت باندې اعتقاد او اقرار کوي.

ګواکې «اسلام» د انقیاد او تسلیم او د مسلمانی د احکامو د منلو بل نوم دی، هسې خو له شروع څخه د آخر الزمان رسول الله صلی الله علیه وسلم تر زمانې پورې ټولو پیغمبرانو علیهم السلام همدا د «اسلام» دین راوړی، او په خپلو زمانو کې یې خپلو قومونو ته له وخت سره مناسب احکام وررسولي، او د طاعت او عبادت او د حکم منلو او د (الله واحد، احد، صمد) د خالص پېژندلو او عبادت کولو په جانب یې خلق بللي، خو په دې سلسله کې څمونږ خاتم الأنبیاء محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم ګرد عالم ته داسې یو اکمل او ډېر جامع او عالم شموله (ټول جهان ته شامل) او نه نسخ کېدونکی هدایت راوړی دی، چې دا مبارک دین نه یواځې ګردو سابقه وو او حقه وو شرائعو لره شامل دی، بلکه د نورو زیاتو ښېګڼو او خصوصیاتو لرونکی هم دی، چې دا لارښوونې پخپل دې خصوصي رنګ سره د «اسلام» په نامه موسومې او ملقبې شوي دي.

په هر حال په دې آیت کې د نجران دنصرانیانو په مخ کې عموما اعلان کړی شوی دی، چې دین او مذهب یواځې د همغه شي نوم کېدی شي، چې بنده په هغه سره د زړه له اخلاصه خپل ځان او مال پاک الله ته ور وسپاري، او په هر وخت کې هر هغه حکم چې د هغه له جانبه وررسیږي؛ هغه بې له وړاندې او وروسته کولو، او څه ویلو څخه ژر تر ژره ومني، او تعمیل یې کړي، او تل د خپل تسلیم غاړه الله ته کېږدي.

نو هغه څوک چې الله تعالی ته ځامن او لمسي ټاکي، او مسیح او مریمی علیهما السلام دتصویرونو او دصلیب دشکل عبادت کوي او دخنزیر (سوډر) غوښه خوري، انسان ته الله وائی او الله لکه دانسان په شان ګڼي، او دانبیاو او اولیاو وژل ورته آسان کار ښکاري، دحق دین دمحو کولو لپاره کوششونه کوي، او دهغه رسول قصداً او عمداً تکذیب کوي، چې دموسی او عیسی علیهما السلام دبشارتونو سره سم مبعوث شوي او یا هغه ناپوهان چې دتیګو، ونو، ستورو، لمر، او سپوږمی او نورو عبادت کوي او دحلالو او حرامو معیار یواځی خپل نفساني خواهشات ګڼي، آیا له دوی څخه څوک ددی خبري وړ دي چې ځان ته مسلم ووائي او دابراهیمی ملت دپیروۍ دعوه و کړي؟.

وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ۗ

او اختلاف نه دی کړی هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب (چې یهودان او نصرانیان دي) مګر وروسته له هغه چې راغی دوی ته علم (په توحید د الله او نبوت د محمد باندې) په سبب دضد، حسد، کینې، چې وه په منځ د دوی کې.

تفسیر: یعني «اسلام» یو واضح او روښانه دین دی، هغه دلایل چې ثابتوي؛ چې موسی او عیسی علیهما السلام پیغمبران دي، او «تورات» او «انجیل» آسماني کتابونه دي، له هغو څخه خورا ښه، ټینګ، قوي، او زورور دلائل د محمد صلی الله علیه وسلم په رسالت، او د القرآن العظیم په کلام الله توب باندې شته، بلکه پخپله همغه کتابونه د دوی په حقانیت باندې شاهدي ورکوي، خالص توحید یو صاف او ښکاره مضمون دی، چې د هغه په خلاف د څوی او دپلار مفکوره یوه داسې چټي (بېکاره) دعوی ده، چې هیڅ علمي اصول د هغه تایید نه کوي، اوس چې کتابیان له اسلام سره مخالف شوي دي، نو د دې روښو حقائقو تکذیب ته یې ملاوې تړلي دي، او د الله تعالی له حکم منلو څخه غاړه غړوي، نو د دې مخالفت سبب پرته له ضد، حسد، عناد، او د مال او جاه له حرصه بل شی نشي کېدی.

وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللَّهِ فَإِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿١٩﴾

او هر څوک چې کافر کیږي (انکار کوي) په آیتونو د الله (او احکام او د قدرت او وحدانیت علامې ونه مني) پس بېشکه الله ډېر ژر حساب والا دی (نو یې ژر په سزا رسوي).

تفسير: په دنيا کې هم، او په آخرت کې خو خامخا پوره حساب او کتاب ورسره کوي، بيا به يې هرومرو د عمل په قدر په سزا رسوي.

فَإِنْ حَآجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلَّهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ۗ وَقُل لِّلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ أَأَسْلَمْتُمْ ۚ فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوا ۖ وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ ۗ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ﴿٢٠﴾

پس که بيا جګړه کوي دا (کافران) له تا سره (له دغو دلائلو وروسته هم) پس ووايه: (ای محمده ! دوی ته چې) ما خالص تابع کړی دی مخ خپل (يعني ځان خپل احکامو د) الله ته، او هر هغه څوك چې متابعت کوي زما (هغه هم خپل ځان الله ته سپارلی دی)، او ووايه (ای محمده !) هغو کسانو ته چې ورکړې شوی دی دوی ته کتاب (يعني يهودانو او نصرانيانو ته) او ناپوهانو (مشرکانو د عربو) ته: آيا اسلام راوړی تاسې؟ (يعني اسلام راوړئ !) پس که اسلام راوړ دوی، پس په تحقيق چې وموندله دوی سمه صافه لاره، او که وګرځېدل دوی (له اسلامه) پس بېشکه همدا خبره ده چې پر تا تش تبليغ (د هدايت) دی، او الله ښه ليدونکی دی د بندګانو.

تنبيه: د عربو مشرکانو ته يې ځکه اُمّي (ناپوه) وويل، چې له دوی سره د سماوي کتابونو څه پوهه او تعليم نه وو.

إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢١﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٢﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران کېږي پر آياتونو (احکامو) د الله باندې، او وژني دوی انبياء په ناحقه سره، او وژني هغه کسان چې حکم کوي هغوی په عدل (او انصاف) سره له خلقو څخه؛ پس زېری ورکړه دوی ته په عذاب دردناك سره. دا همغه کسان دي چې باطل (ضائع) شوي دي (نېک) عملونه د دوی په دنيا کې (له لعنت او مذلت څخه يې پرې نجات ونه موند) او (هم) په آخرت کې (چې له دوزخه پرې خلاص نشول) او نشته دوی ته هيڅ مددګاران (د عذاب په دفعه کې).

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ

آيا نه ګورې ته هغو کسانو ته چې ورکړی شوی وو دوی ته څه برخه له کتابه (تورات) نه.

تفسير: يعني هغه لږه يا ډېره برخه د «تورات» او «انجيل» او نورو چې له لفظي او معنوي تحريفاتو او اړولو ځنې پاتې ده، يا د کتاب هغه لږه يا ډېره برخه چې د هغې پوهه او فهم د دوی په برخه شوی دی.

يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾

حال دا چې وباله شي دوی طرف د کتاب د الله ته لپاره د دې چې حکم وکړي (دا کتاب) په منځ د دوی کې؛ بيا مخ ګرځوي يو ډله له دوی نه، حال دا چې دوی تل ځنګ کوونکي دي (له قبوله د حقه په تغافل سره).

تفسير: يعنې کله چې دوی را وبلل شي، چې د هغه لوی قرآن په لوري راشي ! چې ستاسې د منل شويو کتابونو له زيري سره سم راغلی دی، او ستاسې د ټولو جګړو فيصلې په ښه ډول سره کوي، نو د هغوی د پوهانو يو ډله ځان ناګاره (ناخبره) اچوي، او په تغافل سره ترې مخ ګرځوي، حال دا چې د لوی قرآن په لوري بلنه په حقيقت کې د «تورات» او «انجيل» په لوري بلنه ده.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُودٰتٍ ۖ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾

دغه (ګرځېدل د دوی) په سبب د دې دي؛ چې بېشکه دوی (يهودان) وايي: له سره به ونه رسيږي مونږ ته اور (د دوزخ) مګر يو څو ورځې شمېرلې شوې (لږې)، او غره کړي (تېر ايستلي) دي دوی په دين خپل کې هغه شي چې وو دوی چې دروغ به يې جوړول (په دين کې).

تفسير: يعنې د هغو د تمرد او طغيان او په ګناهونو باندې د زړورتيا علت دا دی چې د سزا څخه وېره نه لري، د دوی خورا (ډېر) لوی دروغ چې له خپل ځانه يې جوړ کړي دي دا دي: «که مونږ ډېره سخته ګناه هم وکړو، نو فقط له شمېرلو ورځو څخنې زياته موده به نه په عذابېږو» لکه چې تفصيل يې اول جزء د «البقرة» سورت په ۸۰ آية ۸ رکوع کې تېر شو.

او همدا راز يې نور دروغ او چټي (بېکاره) خبرې له خپلې ګېډې څخه رايستلي دي، مثلا چې مونږ د الله منلي ځامن يو، يا د انبياوو له اولادې څخنې يو، او الله تعالی له يعقوب عليه السلام سره وعده کړېده، چې د هغه اولادې ته به سزا نه ورکوي، او که سزا يې هم ورکوله، د قسم په ځای کولو لپاره به يو جزئي او مؤقتي عذاب وي.

نصرانيانو خو د کفارې مسئله را ايستلې ده، او د خپلې ګناه او سوال او ځواب خبرې يې بيخي خلاصي کړي دي، «اللهم أعذنا من شرور أنفسنا».

فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنٰهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾

نو څه حال به وي هغه وخت کله چې يو ځای کړو مونږ دوی لپاره د (حساب د هغې) ورځې چې نشته هيڅ شک په (راتلو د) هغې کې، او پوره به ورکړه شي هر نفس ته جزا د هغه عمل چې کړی يې وي، حال دا چې په دوی به ظلم ونه کړی شي (د حسناتو په کمولو يا د سيئاتو په زياتولو).

تفسير: يعنې په وهمي جرائمو باندې به سزا نه ورکوله کيږي، بلکه پر هغو چارو باندې به دوی ته سزا ورکوله کيږي، چې د هغه جرم ثابت وي، او دوی يې په خپله هم مني، او هومره چې دوی استحقاق لري، له هغې څخنې زياته سزا هغوی ته نه ورکوله کيږي، او نه به د چا خورا لږه نيکي ضايع کېدی شي.

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَن تَشَآءُ وَتَنزِعُ الْمُلْكَ مِمَّن تَشَآءُ وَتُعِزُّ مَن تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَن تَشَآءُ ۖ بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۖ إِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٦﴾

ووايه (ای محمده !) يا الله (ای) مالکه د سلطنت (واکداره د پاچاهی !) ورکوې ته سلطنت هر هغه چا ته چې اراده وکړې (يا الله د ورکولو يې) او بېرته اخلې سلطنت له هر هغه چا څخنې چې اراده وکړې (دبېرته اخيستو يې) او عزت ورکوې هر هغه چاته چې اراده وکړې (يا الله د عزت

يې) او خوار ذليل كوې هر هغه څوك چې اراده وكړې (دذلت يې)، په لاس ستا كې (هر راز) خير (ښېګڼې) دي، بېشكه ته (يا الله) پر هر شي باندې ښه قادر يې (هم په وركولو، هم په اخيستلو، هم په عزت، هم په ذلت).

**تفسير:** يهودانو او منافقانو په مسخرو او د ټوكو په ډول سره ويل: «وګورئ ! دا خواران چې د قريشو د حملې او يرغل له وېرې د مدينې په چارچاپېر كې خندقونه كندي، د (قيصر) او (كسرى) د تاج او تخت د نيولو خوبونهويني»، مګر الله تعالى د ځو كلونو په منځ كې دا ټولې وعدې ټولو ته وروښودې، چې د (روم) او (پارس) د خزانو هغه ګردې كيليګانې (كنجيانې) يې چې د هغو وعده يې له پاك رسول صلى الله عليه وسلم سره كړې وه، د عمر فاروق اعظم رضي الله عنه په زمانه كې يې څرنګه د مسلمانانو لاس ته وروستلې، او په څه ډول سره د اسلامي مجاهدينو په منځ كې وويشلى شوې؟

اصلي خبره خو داده چې دا مادي عزت او سلطنت څه شى نه دى، ګواكې دا دعا يو راز پېشګويي وه چې عنقريب د دنيا نقشه بدليدونكې ده، هغه قوم چې له دنيا څخه لرې او جلا پروت وو، د دنيا د لويو سلطنتونو او عزتو خاوند به شي، او هغه كسان چې پاچاهي يې كوله، دوى به د خپلو بدو عملونو له امله د خوارۍ او ذلت په كندو كې وغورځول شي.

تُولِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُولِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ

ننه باسې (ته يا الله) شپه په ورځ كې (چې تل په پسرلي كې له شپو كموې، او په ورځو كې يې زياتوې) او ننه باسې (ته يا الله) ورځ په شپه كې (چې تل په مني كې له ورځو كموې، او په شپو كې يې زياتوې).

**تفسير:** يعني كله چې شپه لنډه وي ورځ اوږده وي، او كله ددې عكس كوې، مثلا په يوه موسم كې (د جدي اوله) شپه ۱۴ ګړۍ، او ورځ لس ګړۍ كوې، او څو مياشتې وروسته (د سرطان اوله) كې له شپې څخه ګړۍ لنډوې، او په ورځ باندې يې زياتوې، او شپه لس ګړۍ كوې، څكه چې لمر او سپوږمۍ او ګرد ستوري او نور بې ستا له ارادې څخه يو ذره هم حركت نشي كولى.

وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

وباسې (ته يا الله !) ژوندى له مړي نه (لكه حيوان له نطفې نه، مرغه له هګۍ، كامل له ناقص) او وباسې (ته يا الله !) مړى له ژوندي نه (لكه نطفه له حيوان، هګۍ له مرغه، ناقص له كامل نه).

**تفسير:** يعني لكه هګۍ له چرګې څخه او چرګه له هګۍ څخه، بنيادم له نطفې څخه، او نطفه له بنيادم څخه، له جاهل څخه عالم، او له عالم څخه جاهل، له كامل څخه ناقص، او له ناقص څخه كامل ايستل او جوړول همدا ستا كار دى.

وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٢٧﴾

او روزي وركوې (ته يا الله) هر هغه چا ته چې اراده وفرمايې (د روزي وركولو يې ډېره زياته) بې حسابه.

**تفسير:** «يهودانو هسې ګڼله هغه لويي چې پخوا په مونږ كې وه؛ هغه به تل پاتې وي، او د الله تعالى له قدرت څخه غافل وو، چې الله تعالى هر هغه چاته چې اراده وكړي، عزت او سلطنت وركوي، او هغه چا ته چې اراده وكړي، ذلت او

نکبت ورکوي، په جاهلانو کې کامل پیدا کوي (لکه چې د عربو په امیانو کې یې محمد صلی الله علیه وسلم) او له کاملانو څنې جاهلان پیدا کوي، (لکه چې په بني اسرائیلو کې یې وکړ) او هر هغه چا ته چې اراده یې وشي، (حسي او معنوي) بې حساب رزق ورکوي».

لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكٰفِرِينَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۗ

نه دې نیسي مؤمنان کافرانو لره دوستان بې له مؤمنانو (یعنې مؤمنان دې یو له بله سره دوستي وکړي)، او هر څوک چې وکړي دا (کار یعنې دوستي له کفارو سره) نو نه دی (د ده تعلق) له (دین د الله یا د دوستۍ د) الله سره په هیڅ شي کې، مګر (خو روا ده دغه دوستي) که ځان ساتئ تاسې له دوی نه په ځان ساتنه سره.

تفسیر: یعنې کله چې د حکومت او د سلطنت او د جاه او عزت او د هر راز تقلباتو او تصرفاتو واګې یواځې د پاک الله په لاس کې دي، نو هغو مسلمانانو لره چې په صحیحه معنی سره باور لرونکي دي، نه ښایي چې دخپلو دوستانو په دوستۍ او د خپلو اسلامي ورونړو په وروروليٰ اکتفا ونه کړي، او خامخا د الله جل جلاله د دښمنانو سره دوستي او مدارات وکړي، ځکه چې الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم دښمنان هیڅېړې د مسلمانانو دوستان نه شي کېدی، هو ! د تدبیر او انتظام په درجه کې د کفارو له لوی ضرر څخه د خپلې ضروري ژغورنې (ساتنې) او د حفاظت صورتونه په مشروعو او معقولو طریقو سره غوره کول، د «ترک موالات» له حکم څنې په دې ډول سره مستثنی دي، لکه چې د ۹ م جزء (د الأنفال په ۱۶ آیت ۲ رکوع) کې له ﴿وَمَنْ يُّوَلِّهِمْ يَوْمَىِٕذٍ دُبُرَهٗٓ﴾ څنې ﴿اِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ اَوْ مُتَحَيِّزًا اِلٰى فِئَةٍ﴾ مستثنی کړی شوی دی، همغسې چې هلته د «تحرف» او د «تحیز» په حالت کې حقیقتا «فرار من الزحف» نه وي، او یواځې صورتًا وي، دلته هم ﴿اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً﴾ حقیقي موالات نه دی، او تش صوري «موالات» دې وګڼل شي ! چې مونږ هغه د «مدارات» په نامه سره یادوو، ددې مسئلې تفصیل دې (۶ جزء د «المائدة» په ۸ رکوع د دې ۵۱ آیت د فوائدو په شرح کې وکتل شي !) ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ﴾ الآیة.

وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۗ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸﴾

او ویروي تاسې لره الله له نفس خپل نه، او (خاص) طرف د الله ته دې ورتله (ستاسې او د ټولو).

تفسیر: یعنې د مؤمن په زړه کې ښایي اصلي ویره له پاک الله څخه وي، او داسې کومه خبره دې نه کوي، چې د الله تعالی د ناراضۍ سبب شي، لکه چې له اسلامي جماعت څنې تجاوز وکړي، او بې له ضرورته له کافرانو سره ظاهري یا باطني «موالات» وکړي، یا د ضرورت په وخت کې د موالاتو د غوره کولو په صورت کې له شرعي حدودو څنې تېرۍ او تجاوز وکړي، یا یواځې موهوم او حقیر خطرونه یقیني او مهم ثابت کړي، یا دا ډول مستثنیات یا شرعي رخصتونه د خپلو نفساني غوښتنو آله وګرځوي، نو داسې کسانو لره ښایي چې دا خبره هم په یاد ولري چې دوی ګرد دپاک الله لوی دربار کې حاضریدونکي دي، او هلته به دوی د خپلو دغو دروغو، حیلو، او پلمو (منصوبو) جزا مومي.

ښایي د قوي مؤمن شان، او دصحیح مسلمان ایمان داسې وي، چې له رخصت څنې تېر شي !، او عزیمت او فعالیت ته متوجه او څیر شي !، او له مخلوق څنې ونه ویرېږي، او تل تر تله له خالق جل و علا څنې وویرېږي.

قُلْ إِنْ تُخْفُوا مَا فِي صُدُورِكُمْ أَوْ تُبْدُوهُ يَعْلَمْهُ اللَّهُ

ووایه (ای محمده ! دوی ته) که پټ کړئ تاسې هغه شی چې په سینو (زړونو) ستاسې کې دی، یا ښکاره کړئ تاسې هغه؛ معلوم دی هغه (هم) پاک الله ته.

تفسیر: یعني ممکن دی چې بنیادم خپل نیت او د زړه خبره له نورو څنې پټه کړي، ولې په دې ډول الله تعالی نشي ترې ایستلی، ﴿وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ﴾، د (۱) جزء د «البقرة» سورت ۲۷ رکوع، ۲۲۰ آیت.

وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿۲۹﴾

او معلوم دی (الله ته ټول) هغه شیونه چې په اسمانونو کې دي (له علویاتو) او هغه شیونه چې په ځمکه کې دي (له سفلیاتو، نو الله ته ستاسې پټ او ښکاره هم معلوم دي) او الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځینې یې د داسې متخلفینو تعذیب دی).

يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُحْضَرًا وَمَا عَمِلَتْ مِنْ سُوءٍ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُ أَمَدًا بَعِيدًا

(او وویرېږئ له) هغې ورځې چې مومي به هر نفس (په کې) هر هغه څه چې کړي وي له خیره (له نیکی په خپل مخ کې) حاضر کړی شوی، او هر هغه څه چې کړي وي ده له بدی نه، آرزو به کوي دا (نفس) د دې چې کاشکې په منځ د دې (نفس کې) او په منځ د دغه (بد عمل) کې مسافه وی لرې (اوږده).

وَيُحَذِّرُكُمُ اللَّهُ نَفْسَهُ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ ﴿۳۰﴾

او ویروي تاسې الله له نفس خپل نه، او الله ډېر مهربان دی پر بندګانو (خپلو).

تفسیر: دا هم د ده له مهربانۍ څنې ده؛ چې د هغې لویې ویروونکې ورځې له راتګه تر مخه تاسې ور څنې ډاروي، او په تکرار سره مو خبروي، چې له خرابو چارو څخه مخصوصا د کافرانو له دوستۍ څنې مو ځانونه وژغورئ (وساتئ) ! او د ښېګڼې (خیر) په لاره باندې سم لاړ شئ، او د قهار پروردګار له قهر څنې مو ځانونه لا له پخوا وساتئ !، د پاک قرآن دا ځان ته یو دستور دی، چې عموما له خوف سره د رجا مضمون ګډ اوروي، دلته یې هم د ترهیب او ویرې د مضمون د معتدل کولو له امله ﴿وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ﴾ په آخر کې راوړ، یعني له الله جل جلاله څخه وویرېږئ، او خراب او بد کارونه پرېږدئ !، نو د ده مهرباني به بیا تاسې د استقبال لپاره تیاره ده.

قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿۳۱﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) که چېرې یئ تاسې چې محبت کوئ له الله سره، پس متابعت وکړئ زما، چې محبت به وکړي الله له تاسې سره، او مغفرت به وکړي تاسې ته د ګناهونو ستاسې، او الله مغفرت کوونکی د (خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: د الله تعالی د دښمنانو د موالات او محبت له منع کولو څخه وروسته د الله تعالی د مینې او محبت معیار راښیي، یعني که په دنیا کې څوک د خپل حقیقي مالک د محبت دعوی یا خیال لري، نو لازم دي چې هغه د محمدي (صلی الله وسلم علی محمد) دین د متابعت په محک (کسوټی) باندې وسولولی شي، چې دده دروغ او رښتیا ښکاره شي،

هر سړی په هره اندازه چې د محمد صلی الله علیه وسلم په شریعت باندې سم ځي، او د اسلامي دین رڼا د خپلې لارې مشعل ګرځوي، نو ښایي په همغه اندازه سره د الله تعالی په محبت کې صادق او سوچه وپېژندل شي، او په هره اندازه چې دی په دې دعوی کې رښتین وي، په همغه اندازه سره هغه د محمد صلی الله علیه وسلم د شریعت په پیروی کلک او ټینګ ګڼلی شي، چې د هغه مېوه به ده ته داسې په لاس ورځي، چې پاک الله به د ده سره مینه کوي، او د الله تعالی د مینې، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د متابعت په برکت به د ده هغه پخواني ګناهونه معاف، او وروسته له هغه به، د پاک الله د راز راز ظاهري او باطني مهربانیو مورد وګرځي.

ګواکې د توحید له بیان څخه وروسته له دې ځایه د نبوت په بیان شروع کېږي، او د آخر الزمان پیغمبر رسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت ته بلنه کېږي.

قُلْ أَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ﴿٣٢﴾

ووایه (ای محمده دوی ته) چې اطاعت کوئ تاسې د الله او د رسول (د الله چې محمد دی)، پس که وګرځېدل دوی (له دې اطاعت نه) پس بېشکه الله دوستي نه کوي له کافرانو سره (نو په عذابوي یې).

تفسیر: یهودانو او نصرانیانو به ویل چې: ﴿نَحْنُ أَبْنَاءُ اللَّهِ وَأَحِبَّاؤُهُ﴾ «مونږ د الله تعالی ځامن او دوستان یو»، دلته دا ښکاره شوه چې کافر هیڅکله د الله تعالی محبوب نشي کېدی، او که په رښتیا سره مو د هغه محبوبیت پکار وي، نو د هغه د احکامو په تعمیل کې زیار (محنت) وکړئ، او د ده د رسول صلی الله علیه وسلم احکام ومنئ، او د الله تعالی د لوی محبوب او دوست د سنتو متابعت وکړئ !.

د نجران جرګې همداسې ویلي وو، چې مونږ د مسیح علیه السلام تعظیم اوعبادت د الله تعالی د تعظیم او د محبت لپاره کوو، په دې سره د هغو ځواب هم ورکړ شو.

إِنَّ اللَّهَ اصْطَفَىٰ آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ

بېشکه چې الله غوره کړی دی آدم او نوح او اولاده د ابراهیم (او ابراهیم) او اولاده دعمران (او عمران).

تفسیر: «یعني بېشکه الله غوره کړی دی آدم علیه السلام په نبوت، رسالت، د اسماوو په تعلیم، د ملائکو په سجده، په بي له مور او پلاره پیدا کولو او د ټولو انسانانو پـه پلارتـوب سره، او غوره کړئ یې دی نـوح علیه السلام په نبوت، رسالت، د عمر په اوږدوالي، او د پخواني شریعت په منسوخولو سره، او ابراهیم علیه السلام او آل د ده چې اسماعیل علیه السلام او اسحاق علیه السلام او د دوی اولاده؛چې څمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په دغه اولاده او آل کې داخل دی، او آل د (عمران) چې موسی او هارون، او بي بي مریمه او عیسی علیهم السلام په کې شامل دي؛ په خلت، رسالت، او نورو مفاخرو او محامدو سره».

عمرانان دوه دي: یو د موسی علیه السلام پلار، دویم د مریمې رضي الله تعالی عنها پلار، زیاتره پخواني او وروستني علما له دې (عمـران) څنې ثاني (عمـران) مـرادوي، ځکـه چې ﴿إِذْ قَالَتِ امْرَأَتُ عِمْرَانَ﴾ د همغه دویم (عمران) له کورنۍ څخه قصه کوي، او غالبا ددې سورت نوم به هم له همدې امله (آل عمران) ایښودل شوی وي، چې په هغه کې د ثاني (عمران) د کورنۍ (یعني د عیسی علیه السلام او مریمې رضي الله تعالی عنها) قصه په بسط او تفصیل سره ذکر شوې ده.

عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۳﴾ ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ ۗ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾

پر ټولو خلقو (د زماني خپلې په رسالت او روحاني او جسماني خصائصو سره). حال دا چې اولاده وو ځيني د دوی له ځينو نورو څخه، او الله ښه اورېدونکی دی (د ګردو اقوالو) ښه عالم (پر ټولو احوالو).

تفسير: د آدم عليه السلام دا انتخاب او غوره والی، فضل او شرف چې مونږ يې په «نبوت» سره تعبيروو، د ده په شخصيت پورې محدود نه وو، بلکه د ده په اولاده کې نوح عليه السلام ته هم ورسېد، بيا له ده ځنې د ده په اولاده کې ابراهيم عليه السلام ته ورسېد، له دې ځايه يې يو نوی صورت پيدا کړ، له آدم او نوح عليهما السلام څخه وروسته څومره انسانان چې په جهان کې پيدا شوي دي، دوی ګرد د همدې دوو معظمو رسولانو له اولادې ځنې وو، او الله تعالی په خپل محيط علم او کامل اختيار سره په راتلونکو پېړيو کې هم د زرهاوو کورنيو په منځ کې، د دې لوی منصب لپاره د ابراهيم عليه السلام کورنۍ مخصوصه کړه، څومره انبياء او رسولان چې له ابراهيم عليه السلام څخه وروسته مبعوث شوي دي، هغه ټول د ده د دوو ځامنو « اسحاق عليه السلام، او اسماعيل عليه السلام» له اولادې څخه وو.

څرنګه چې د نسب سلسله عموما پلار ته منسوبيږي، او مسيح عليه السلام بې پلاره پيدا شوی وو، نو داسې وهم کيدی شو چې د ده نسل به د ابراهيم عليه السلام له نسل ځنې مستثنی وي، له دې کبله الله تعالی آل دعمران او ﴿ذُرِّيَّةً بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ﴾ وفرمايه، او په دې سره يې تنبيه ورکړه: چې هر کله مسيح عليه السلام يواځې د خپلې مور له ګېډې ځنې پيدا شوی دی، نو د هغه د نسب سلسله هم د مور له لوري اخيستل کيږي، نه چې معاذ الله د الله تعالی له لوري، او ښکاره ده چې د ده د مور صديقې مريمې رضي الله تعالی عنها د پلار د نسب سلسله بالآخره ابراهيم عليه السلام ته رسيږي، نو د (عمران) آل او د ابراهيم عليه السلام آل دواړه سره يو دي، او هيڅ يو رسول له ابراهيمي کورنۍ ځنې د باندې پاتې نه شو.

اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّيْ نَذَرْتُ لَكَ مَا فِيْ بَطْنِيْ مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۵﴾

(ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وويل ښځې د عمران چې: ای ربه زما ! بېشکه ما، نذر کړی مې دی تاته هغه شی چې په ګېډه زما کې دی، حال دا چې هغه به آزاد وي (له نورو مشاغلو د بيت المقدس خدمت ته)، پس قبول کړه ته (ای ربه ! دا نذر) له ما نه، بېشکه ته چې يې هم دا ته يې ښه اورېدونکی (د ګردو اقوالو) ښه عالم (په ټولو احوالو).

تفسير: د «عمران» ښځې دخپلې زمانې له دوده (رواجه) سره سم پخپل ځان باندې نذر منلی وو، چې «ای ربه ! هغه هلك چې زما په ګېډه کې دی، ستا په نامه دې آزاد او خوشې وي»، د دې خبرې مطلب دا دی چې هغه له ګردو دنيوي مشاغلو او له نورو شيانو ځنې خلاص او تل به د الله جل جلاله په عبادت کې بوخت (مشغول) او د معبد په خدمت کې به لګيا وي، ای الله جل جلاله ! ته له خپلې مهربانۍ ځنې زما دا نذر قبول کړه ! ته زما عرض اورې، او زما نيت او اخلاص تاته ښه معلوم دی، ګواکې په دې لطيف ډول سره يې وغوښت چې هلك ور په برخه شي، ځکه چې جينۍ د هغه خدمت لپاره نه قبلېده.

فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ وَضَعْتُهَآ اُنْثٰى ۗ

پس کله چې وې زېږاوه هغه (نذر) نو وويل (ښځې دعمران) چې: ای ربه زما، بېشکه زه چې يم ومې زېږاوه هغه (نذر) حال دا چې ښځه (جينۍ) ده.

تفسیر: دا یې په حسرت او افسوس سره وویل، ځکه چې هغه پېښه د دې له توقع او هیلې ځنې پر ته پېښه شوې وه، او د جونو د خدمت منلو دستور په معابدو کې نه وو.

وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ؕ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْأُنْثَىٰ ۚ

او الله ښه پوه دی په هغه شي چې زېږولی وو دې (د عمران ښځې)، او نه دی نارینه (چې هغې غوښتی وو لپاره د خدمت د بیت المقدس) په شان د دې ښځې (جینۍ).

تفسیر: دا د الله جل جلاله کلام دی، چې د حکایت په منځ کې د معترضې جملې په ډول نازل شوی دی، یعنې هغې ته ښکاره نه وه چې څه یې زېږولي دي؟ د دې جینۍ قدر او قیمت الله تعالی ته ښه معلوم دی، هغه هلک چې دې غوښت دې جینۍ ته کله رسېدی شي، دا جینۍ بالذات مبارکه ده، او د دې په وجود کې یو عظیم الشأن مبارک هلک پروت دی.

وَإِنِّي سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ۝٣٦

او بېشکه ما نوم کېښود د دې مریمه، او بېشکه زه پناه نیسم دې لپاره تا پورې او اولاد د دې (مریمې ته) له شیطان مردود (رټلي شوي) نه.

تفسیر: حق تعالی دا دعا قبوله کړه، په حدیث شریف کې دي: «هر کله چې د بنیادمانو اولاده د زېږېدلو په وخت کې له موره جلا شي، او په ځمکه ولوېږي، نو شیطان یې مس کوي، مګر عیسی علیه السلام او مریمه رضي الله تعالی عنها له دې مس څخه مستثنی دي»، ددې حدیث مطالب دنورو احادیثو له یو ځای کولو سره داسې کېږي، چې هر مولود اصلا په صحیح فطرت پیدا کېږي، چې دغه فطرت له لوېنې او د ده د عقل او تمیز له ظهور څخه وروسته ځرګندېږي، و لې د شاوخوا د حالاتو او خارجي اثراتو له امله ډېر ځلې د هغه اصلي فطرت ورکېږي، چې د دغه مطلب تعبیر په حدیث کې په «فأبواه یهودانه و ینصرانه» سره شوی دی، بیا څنګه چې د ایمان او طاعت تخم د ده د فطرت په جوهر کې پټ او په غیر مرئي ډول ایښود شوی دی، حال دا چې په هغه وخت کې ایمان لا څه، چې د غټو غټو محسوساتو له ادراك او شعور نه هم هغه مولود عاجز وي، په همدې توګه د ولادت په وخت کې په غیر محسوس ډول د شیطان په مس کولو سره خارجي اثر شروع کېږي، دا ضروري نه دی چې هر څوك د شیطان د مس کولو اثر قبول کړي، یا که یې قبول نه کړي، نو وروسته له هغه؛ هغه اثر همغسې پاتې هم وي.

فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُولٍ حَسَنٍ وَأَنْبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۖ

پس قبول کړه دا (مریمه) رب د دې (د نارینه په ځای) په قبلولو ښو سره، او زرغونه (لویه) یې کړه په زرغونولو (لویولو) ښو سره، او (الله) کفیل وګرځاوه دې لره زکریا علیه السلام.

تفسیر: یعنې اګر که جینۍ وه، خو الله تعالی هغه له هلك ځنې زیاته وګرځوله، او ویې منله، د بیت المقدس د مجاورینو په زړونو کې یې د اخبره واچوله، چې له عام دود (رواج) او دستور څخه پر ته هغه جینۍ د بیت المقدس په خادمانو کې شامله کړي، او همغسې یې مریمې رضي الله تعالی عنها ته هم د قبول صورت ورعطا او خپل منلي بنده زکریا علیه السلام ته یې په کفالت ورکړه، او په خپل دربار کې یې په ښو منلو سره سر لوړي ورکړه، په جسماني، روحاني، علمي، اخلاقي، او له هر حیثه یې زیاته ترقي ور په برخه کړه، کله چې په مجاورینو کې د دې د پالنې په نسبت جګړه پېښه شوه، نو د انتخاب قرعه د زکریا علیه السلام په نامه وخته، چې دا جینۍ د خپلې ترور د شفقت په غېږ کې تربیت

وومومي، او د زکريا عليه السلام له علم او ديانت څخه ګټوره شي، زکريا عليه السلام د مريمې رضي الله تعالى عنها په تربيت او مراعات کې ځومره يې چې د لاسه کېده هم هغومره يې کوښښ کاوه، کله چې بي بي مريمه رضي الله تعالى عنها پېغله شوه، نو مسجد سره يې نږدې ورته يوه ځانته حجره مخصوصه کړه، چې دې بي بي به ټوله ورځ هلته عبادت کاوه، او د شپې له مخې به بېرته خپلې ترور کره ورتله.

كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۖ

هر کله به چې ننوت دې ته زکريا په محراب (په عبادت خانه) کې نو موندله به يې له (مريمې) سره څه روزي (يعنې مېوې د ژمي په اوړي، او مېوې د اوړي په ژمي کې).

**تفسير:** د اکثرو اسلافو په نزد له (رزق) څنې مراد ظاهري خواړه دي، وايي چې له بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها سره بې موسمه مېوې پيدا کېدې، د اوړي تازه مېوې په ژمي کې، او د ژمي تازه مېوې به په اوړي کې له دې سره تل پرتې وې.

قَالَ يَا مَرْيَمُ أَنَّىٰ لَكِ هَٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ ۖ إِنَّ اللَّهَ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٧﴾

ووېل (زکريا): ای مريمې له کومه (راغلې) ده تاته دا روزي؟ ووېل (مريمې زکريا ته): چې دا (روزي) له طرفه د الله ده، بېشکه چې الله روزي ورکوي هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د روزي ورکولو يې ډېره پرېمانه) بېحسابه.

هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهُ ۖ قَالَ رَبِّ هَبْ لِي مِنْ لَدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۖ إِنَّكَ سَمِيعُ الدُّعَاءِ ﴿٣٨﴾

په دغه ځای (يا وخت) کې دعا (غوښتنه) وکړه زکريا له ربه خپله، ووېل (زکريا): ای ربه راوبخښه ! (راکړه) ما ته له نزده خپل اولاد ښه پاکيزه ! بېشکه ته ښه اورېدونکی (قبلوونکی) د دعا يې.

**تفسير:** زکريا عليه السلام بيخي سپين ږيری او (۱۲۰) کلن شوی وو، ښځه يې (۹۸) کلنه او بيخي شنډه وه، دوی ته د اولاد پيدا کېدلو هيڅ يوه ښکاره هيله نه وه، د بي بي مريمې د دې فوق العاده خير او برکت او خوارقو د ليدلو په سبب ناڅاپه د زکريا عليه السلام په زړه کې يو جوش پيدا شو، او سمدلاسه يې دا په زړه کې وګرځېده، چې ماته هم ښايي چې اولاد په نسبت د پاک الله په دربار کې دعا وکړم، هيله شته چې ماته به همدا مېوه بې له موسمه راکړه شي، يعنې په دې زړښت (بوډا والي) کې به د پاک الله په مهرباني اولاد را په برخه شي، د «ذرية» اطلاق په واحد او کثير يو رنګ کاوه شي.

فَنَادَتْهُ الْمَلَائِكَةُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي الْمِحْرَابِ أَنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيَىٰ

نو ور نارې کړې ده ته (زکريا ته) پرښتو (جبريل) حال دا چې دې ولاړ وو، لمونځ يې کاوه په محراب کې (عبادت خانه) کې چې بېشکه الله زېری کوي په تا د يحيی (چې ستا ځوی به وي).

**تفسير:** دعا يې ومنله شوه، زېری ور ورسېد چې ستا په کور کې يو هلک پيدا کېږي، چې د هغه نوم يحيی عليه السلام اېښود شوی دی، د «الملائكة» کلمه د جمعې په صورت سره راوړل يا به تعظيما وي، يا به د ملائکو جنس ور څخه مراد وي.

مُصَدِّقًا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ

حال دا چې تصدیق کوونکی به وي په یوه کلمه سره چې (له طرفه د) الله ده.

تفسیر: له یوې کلمې څنې دلته مسیح علیه السلام مراد دی، چې د الله تعالی د حکم سره سم بې له پلاره پیدا شوی دی، یحیی علیه السلام لا له پخوا څخه خلقو ته خبر ورکاوه، چې مسیح علیه السلام پیدا کېدونکی دی.

وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا

حال دا چې سردار به وي (د خپل قوم په علم، حلم او تقوی سره) او ډېر منع راوړونکی به وي (له شهواتو سره له قدرته).

تفسیر: یعنې له لذاتو او شهواتو څنې به زیات ځان ساتونکی وي، او د الله تعالی په عبادت کې به دومره لګیا وي چې د ښځې په لوري به د التفات کولو وار هم نه ورته رسیږي، دا د یحیی علیه السلام د مخصوص حال بیا ن وو، چې له هغه څخه د محمدي امت لپاره کومه قاعده نشي کېدی، څمونږ د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم پوره امتیاز دا دی چې د عبادت له کمال سره یې د معاشرت کمال یو ځای کړ.

وَنَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۳۹﴾

او نبي به وي له (ډلې د) صالحانو نه (چې نه به خطا کیږي، او نه به ګناه ته قصد کوي).

تفسیر: د صلاح او رشد په اعلی مرتبه باندې به فائز کیږي، چې هغه ته «نبوت» ویل کیږي، یا د «صالح» معنی نېک عمله وي، چې په هغه تقدیر به د هغه معنی خورا (ډېر) نیک عمل کیږي.

قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّقَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴿۴۰﴾

وویل (زکریا) «ای ربه څما ! څرنګه به پیدا کیږي ما لره هلك؟ حال دا چې په تحقیق رسېدلی دی ماته زوړوالی او ښځه مې (هم) شنډه ده»، وویل (جبریل): همداسې (له زوړ او زړې شنډې څخه د اولاد پیدا کول په شان) الله کوي هغه کار چې اراده وفرمایي (د کولو یې که مخالف وي له عادته یا موافق).

تفسیر: یعنې د هغه قدرت او مشیئت د اسبابو په سلسلې پورې تړلی نه دی، اګر که په دې عالم کې د هغه عادت همداسې دی چې له عادي اسبابو څخه مسبّبات پیدا کوي، خو کله کله د عادي اسبابو په خلاف په غیر معمولي طریقې سره د یوه شي پیدا کول هم د هغه خاص عادت دی، اصل دا دی چې مریمې صدیقې رضي الله تعالی عنها ته په خارق العاده ډول رزق رسېدل، او ډېر غیر عادي واقعات ورڅرګندېدل، د دې وضعیت په لیدو سره د بي بي مریمې په حجره کې ناڅاپه د زړه له کومې د زکریا علیه السلام دعا کول بیا ده ته او د ده شنډې ښځې ته په عین زړښت کې په غیر عادي توګه اولاد ورکول، باید د الله تعالی دغه ګردې (ټولې) علامې د هغه عظیم الشأن آیت تمهید وګڼلې شي، چې د بي بي مریمې رضي الله تعالی عنها له وجوده بې د زوج له نږدې کېدلو په قریب مستقبل کې ظاهر کېدونکی وو.

ګواکې د یحیی علیه السلام په غیر معتاد ولادت باندې ﴿كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ﴾ فرمایل تمهید وو لپاره د ﴿كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ﴾ چې وروسته له دې نه د مسیح علیه السلام د غیر معتاد ولادت په سلسله کې راتلونکی دی.

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ؕ

ویل (زکریا) ای ربه ځما ! وګرځوه ما لره څه علامه (د حمل چې لا زما د شکر کولو سبب شي).

تفسیر: یعنې چې له هغه ځنې ښکاره شي چې اوس حمل قرار نیولی دی، تر څو ده ته د ولادت د آثارو د نږدېوالي د لیدلو له کبله یوه نوي خوشالي هم حاصله او د نعمت په شکر کې زیاتره لګیا شي.

قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ

نو وویل (جبریل): «علامه» ستا داده چې خبرې به نه کوې ته له خلقو سره درې ورځې (او شپې) مګر په اشاره سره.

تفسیر: یعنې هلته به تاته دا حالت درپېښ شي چې تر درې ورځو او شپو پورې به له خلقو سره پرته له اشارې هیڅ خبرې ونشې کړی، او ستا ژبه به یوائې د پاک الله په ذکر کې لګیا اوسي، نو وپوهیږه چې اوس حمل مستقر شوی دی، سبحان الله ! هسې علامه یې ټاکلې (مقرر کړې) ده چې د علامو علامه وي، او د خبرېدلو ځنې کوم غرض چې د نعمت شکر دی، هغه هم علی وجه الکمال حاصل شي، ګواکې که وغواړې چې پرته د الله تعالی له ذکر او فکر ځنې کوم شی ووینې، نو په خپله ژبه سره یې نشې ویلی.

وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ ﴿۴۱﴾

او یادوه رب خپل ډېر (لپاره د شکر) ! او تسبیح وایه (لمونځ کوه) ! په آخر د ورځې کې، او په اول د ورځې کې.

تفسیر: یعنې په دغه وخت کې ښایي چې ډېر زیات د الله تعالی په ذکر او فکر کې مشغول، او سبا او بېګا په تسبیح او تهلیل کې مصروف اوسې ! معلومیږي چې له بنیادمانو سره خبرې نه کول یو اضطراري کار او د دې لپاره وو، چې هغه ورځې یوائې د پاک الله ذکر، شکر، او فکر ته فارغې او تشې پاتې شي، مګر په ذکر او شکر بوختېدل او مشغولېدل اضطراري نه وو، بلکه په هغه مأمور شوی وی.

وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۲﴾

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وویل پرښتو (یعنې جبریل): ای مریمې ! بېشکه چې الله غوره کړې یې ته (په کرامت اوعبادت) او پاکه کړې یې ته (له بدو اقوالو او احوالو څخه) او غوره کړې یې ته په ګردو (ټولو) ښځو د عالمیانو (یعنې پر ښځو د زمانې خپلې).

تفسیر: یعنې پرښتې بي بي مریمې رضي الله تعالی عنها ته وویل: چې ته د پاک الله له خوا ځنې لا پخوا غوره شوې یې، چې سره له جلتوبه (جینکتوبه) د بیت المقدس په خادمانو کې د نذرانې په توګه منلې شوې یې، او راز راز لوړ احوال او عالي کرامات در عنایت شول، ښه اخلاق، پاک طبیعت، ظاهري او باطني نزاهت یې دروباښه، او د خپل مسجد د خدمت وړ (لائقه) یې ورګرځولې، او تا ته یې د ګرد (ټول) جهان پر ښځو په ځینو وجوهو کې فضیلت درکړ، مثلا په تا کې یې هسې یو استعداد کېښود، چې بې د بشر له مس کولو څخه یوائې د پاک الله په کامل قدرت لکه عیسی علیه السلام غوندې یو اولو العزم رسول له تا څخه پیدا شي، چې په دنیا کې داسې سرلوړي او امتیاز د هیڅ یوې بلې ښځې په برخه شوی نه دی.

يَٰمَرۡيَمُ ٱقۡنُتِي لِرَبِّكِ وَٱسۡجُدِي

اى مريمې فرمان برداره شه ! (ولاړه شه ! بندګي كوه) لپاره د رب خپل ! او سجده كوه !

تفسير: يعنې كله چې الله تعالى داسې عزت او لوړه مرتبه تاته دركړه، نو ښايي چې ته له اخلاص او تذلل سره د خپل رب جل جلاله په مخ كې سر ښكته كړې ! او د عبوديت د وظائفو په انجامولو كې لا زياته لګيا او مشغوله اوسې ! څو هغه لوى امر چې د هغه د ظهور لپاره ته د وسيلې په ډول درولې شوې يې؛ ښكاره شي.

وَٱرۡكَعِي مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾

او ركوع كوه ! له نورو ركوع كوونكو سره (له نورو لمونځ كوونكو سره په جماعت لمونځ كوه !).

تفسير: لكه چې ركوع كوونكي د پاك الله په مخ كې «ركوع» ته ځي، ته همغسې «ركوع» ته ولاړه شه ! يا يې دا مطلب چې په جماعت سره لمونځ ادا كړه !، او څنګه چې لږ تر لږه په ركوع كې له امامه سره شامليدونكې، د هغه ركعت نيوونكې ګڼل شي، نو ښايي د دې له امله (وجې) لمونځ د ركوع په عنوان سره ياد كړى شوى وي، په دې تقدير سره كه په «اقنتي» كې له «قنوة» څخه «قيام» مراد شي، نو د «قيام» ركوع، او سجود يعنې د لمانځه د درې واړو هيئتونو ذكر به په آيت كې راغلى.

(تنبيه): امكان لري چې په هغې زمانې كې به ښځې په عمومي ډول سره په جماعت كې شريكېدې، يا خاص له فتنې څخه د مأمون پاتې كېدلو په صورت به دوى ته اجازه شوې وي چې جماعت وكړي، يا به دا د بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها خصوصيت وي، يا به بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها پخپله حجره كې يواځې، يا له نورو ښځو سره په ګډه امام پسې اقتداء كوله، او لمونځونه به يې كول، دا ګرد احتمالات شته، والله أعلم.

ذَٰلِكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ نُوحِيهِ إِلَيۡكَۚ

دا (د مريمې، زكريا، او د يحيى ذكر شوې قصې) له اخبارونو د غيبو څخه دي، چې مونږ يې په وحيې سره درلېږو تاته (اى محمده !).

تفسير: يعنې په ظاهره كې ته لوستونكى او ليكونكى نه يې، او نه پخوا له دې نه تا له اهل كتابو سره كوم د اعتبار وړ صحبت كړى دى، چې د هغه په وسيله د تېرو پېښو داسې تحقيقي معلومات ولري، او كه هغوى سره صحبت وكړى شي، نو بيا هم له هغو څخه نه شي مستفيد كېدى، ځكه چې هغوى پخپله د اوهامو او خرافاتو په تيارو كې لويدلې دي.

وَمَا كُنتَ لَدَيۡهِمۡ إِذۡ يُلۡقُونَ أَقۡلَٰمَهُمۡ أَيُّهُمۡ يَكۡفُلُ مَرۡيَمَ وَمَا كُنتَ لَدَيۡهِمۡ إِذۡ يَخۡتَصِمُونَ ﴿٤٤﴾

او نه وې ته (اى محمده ! حاضر) په نزد د دوى (يعنې احبارو د بيت المقدس) كله چې دوى غورځول قلمونه خپل (په اوبو كې چې په دې قرعې سره معلوم كړي) چې كوم له دوى څخه تربيه وكړي د مريمې، او نه وې ته په نزد د دوى كله چې دوى جګړې سره كولې (په كفالت د مريمې كې).

تفسير: كله چې بي بي مريمه رضي الله تعالى عنها د نذر په دود (دستور) ومنله شوه، نو د مسجد د مجاورانو په منځ كې سره جګړه شوه، چې د دې روزنه د چا په برخه شي؟ تر څو چې خبره قرعې اچولو ته ورسېده، ګردو مجاورانو

خپل هغه قلمونه چې په هغو سره به يې «تورات» ليکه، په بهېدونکې اوبو کې واچول، او دا يې سره وويل: «د هر چا قلم چې د دې بهېدونکو اوبو په سر ودرېږي، او اوبه يې يونسې، بلکه د اوبو د جريان په ضد لاړ شي، بنايي همغه د دې بي بي پالونکى وپېژنده شي»، په دې کې قرعه د زکريا عليه السلام په نامه وختله، او حق خپل حقدار ته ورسېده.

إِذْ قَالَتِ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾

(ياد کړه اى محمده !) هغه وخت چې وويل ملائکو (يعني جبريل): اى مريمې ! بېشکه الله زېرى درکوي تاته په يوې کلمې سره چې له طرفه د ده ده، نوم د هغه مسيح عيسى ځوى د مريمې دى، په دې حال کې چې مرتبې والا دى؛ په دنيا کې (په طاعت او نبوت) او آخرت کې (په رفعت او شفاعت) او (د الله) له مقربانو څخه دى.

**تفسير:** عيسى عليه السلام ته دلته او دقرآنکريم په نورو آيتونو کې «کلمة الله» له دې کبله ويل شوى دى چې د هغه ځېږېدل د عام عادت په خلاف پرته د پلار له واسطې څخه يوائې د الله تعالى په حکم سره وو، نو ځکه يې نسبت مستقيما د الله تعالى حکم ته وشو، لکه د الأنفال سورت په ۱۷ آيت کې چې فرمايي: ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾

تنبيه: د «مسيح» لفظ اصلا عبراني دى، چې لومړى له دې نه «ماشيح» يا «مشيحا» وو، چې د هغه معنى «مبارک» او معرب يې «مسيح» دى، پاتې شوه دا خبره چې «دجال» ته مسيح ولې ويل کيږي؟ نو دغه لفظ بالاجماع عربي دى، چې د هغه د تسميې وجه پخپله موقع کې په څو ډولو سره بيان شوې ده، د مسيح عليه السلام بل نوم يا لقب عيسى عليه السلام دى، چې په عبرانې ژبه کې «ايشوع» وو، او د هغه معرب «عيسى» شو، چې معنى يې «سيد» دى.

دا خبره په خاص ډول د توجه وړ ده، چې دلته لوى قرآن د «ابن مريم» کلمه مسيح لره د عَـلَم او نوم د جزء په ډول استعمال کړه، ځکه چې پخپله يې بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها ته د زېري ورکولو په وخت کې داسې وويل: چې تاته د «کلمة الله» زېرى درکول کيږي، چې د هغه نوم به «المسيح عيسى ابن مريم» وي.

ورسته يې ﴿وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ﴾ وويل، او ډاډ يې ورکړ؛ چې الله تعالى به يې نه يوائې په آخرت کې بلکه په دنيا کې به يې د لوى عزت او وجاهت او مرتبې خاوند کړي، او د دښمنانو الزامات به دروغ کړي، د «وجيه» په لفظ باندې دلته داسې وپوهېږئ ! لکه چې د موسى عليه السلام په نسبت الله فرمايلي دي: ﴿يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ ءَاذَوْا مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ اللَّهُ مِمَّا قَالُوا وَكَانَ عِندَ اللَّهِ وَجِيهًا﴾ (۲۲ جزء، د احزاب سورت ۶۹ آيت، ۹ رکوع).

ګواکې هغو کسانو ته «وجيه» وايي چې دوى په خصوصي ډول له دروغو، طعنو، او بدو الزاماتو څخې د الله تعالى په مهربانۍ برائت حاصلوي، هغه د باطني خبث خښتنان (خاوندان) چې د مسيح عليه السلام د نسب په نسبت طعنې کوي، يا کوم انسان په دروغو سره د هغه پلار بولي، يا يې د واقع په خلاف مصلوب يا مقتول يا يې د ژوندانه په حالت کې مړ بولي، يا د ألوهيت او ابنيت او نـورې باطلې عقيدې او د مشرکانو تعليمات ده ته منسوبوي، نو پاک الله به مسيح عليه السلام له دې ګردو الزاماتو څخې په دنيا او آخرت کې په ښکاره ډول سره پاک او بري وګرځوي.

وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّٰلِحِينَ ﴿٤٦﴾

او خبرې به کوي له خلقو سره په مهد (د مور په غېږ يا په ځانګو يا په طفوليت) کې او په کهولت (پوره عمر) کې، او له صالحانو څخه به وي.

تفسیر: یعني خورا (ډېر) ښایسته او په اعلی درجه نېك به وي، اول به دمور په غېږ كې، او بیا به په لویوالي كې عجیبې او غریبې خبرې كوي، په دې الفاظو سره په حقیقت كې د بي بې مریمې رضي الله تعالی عنها پوره تسكین وكړ شو. له پخوانیو بشارتونو او زېرو څخه ممكن وو چې هسې خیال وكړي چې دغه وجاهت خو به یو وخت ورته حاصلیږي، مګر د طعن او د پیغور سلسله د ولادت څخه وروسته سمدستي شروع كیږي، نو په دې وخت كې به په څه ډول سره ځان بري او پاك كړم؟، ددې خبرې ځواب یې وركړ، چې مه ویرېږه ! تاته به د ژبې خوځولو هیڅ ضرورت نه پاتې كیږي، بلكه ته دا ور ښكاره كړه چې «زه نن روژه یم، او له خبرو څخه مې خوله تړلې ده، زما هلك به پخپله ژبه تاسې ته ځواب دركوي»، لكه چې دا مطلب د «مریم» په سورت كې په پوره تفصیل سره راځي.

قَالَتْ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ وَلَدٌ وَّلَمْ يَمْسَسْنِيْ بَشَرٌ

وویل (مریمې): «ای ربه ځما ! څرنګه به پیدا شي ما لره ځوی؟ حال دا چې مس كړې نه یم هیڅ بشر (نارینه، نه په نكاح سره، نه په سفاح «بدكارۍ» سره)».

تفسیر: معلومه شوه چې بي بي مریمه رضي الله تعالی عنها له دې زیري څخه داسې وپوهېده، چې هلك په همدې موجوده حالت كې پیدا كېدونكی دي، كه نه د تعجب هیڅ یوه موقع نه وه.

قَالَ كَذٰلِكِ اللّٰهُ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۭ اِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ۝

وویل (جبریل) همداسې (بې د نارینه له مس څخه) الله پیدا كوي هغه چې اراده وفرمایي (د پیدا كولو یې) هر كله چې اراده (حكم) وكړي (الله) د یوه كار، پس بېشكه همدا خبره ده چې ووایي هغه شي ته چې (پیدا) شه ! پس (پیدا) شي.

تفسیر: یعني په همدې ډول بې د بشر د «مس» او لاس لګېدلو څخه پیدا كیږي، د ده دعادت له مخالفت څخه تعجب مه كوه !، الله تعالی د هر شي په هر رنګ چې اراده وكړي؛ هغه كېدونكی دی، د ده د قدرت تحدید امكان نه لري، د هر كار د كولو اراده چې وكړي، همغه كیږي، الله تعالی جل جلاله و أعظم شأنه نه مادې ته محتاج دی، او نه اسبابو ته ضرورت لري.

وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ۝

او ورزده كوي هغه ته (الله) كتاب (لیك) او حكمت (د شرعي احكامو علم، ژورې خبرې) او «تورات» او «انجیل».

تفسیر: یعني ډېر ښه لیكل به ور زده كړي، یا به د ټولو كتابونو هدایت او د «تورات» او «انجیل» علم ده ته په خصوصي ډول سره ورښیي، او خورا (ډېر) زیاتې د حكمت ژورې خبرې وریادوي، او ممكن دی چې له كتاب او حكمت څخه قرآن او سنت مراد وي، ځكه چې مسیح علیه السلام به د نزول څخه وروسته څمونږ د پاك قرآن او د رسول الله مبارك له سنتو سره سم كار كوي، او حكم به صادروي، او دا هم په هغه صورت كې امكان لري، چې ده ته ددغو شیانو علم او پوه وركړه شي. والله أعلم.

وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِيْٓ اِسْرَاۗءِيْلَ ڏ اَنِّىْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ

او (لیږو یې) رسول طرف د بني اسرائیلو (اولادې د یعقوب) ته (چې وایي دوی ته) بېشكه زه په تحقیق راغلی یم تاسې ته په لویه علامه (دخپل صدق سره) له ربه ستاسې نه.

**تفسیر:** یعنې له مبعوث کېدلو څخه وروسته خپل قوم بني اسرائیلو ته به هسې وايي.

أَنِّيٓ أَخۡلُقُ لَكُم مِّنَ ٱلطِّينِ كَهَيۡـَٔةِ ٱلطَّيۡرِ فَأَنفُخُ فِيهِ فَيَكُونُ طَيۡرَۢا بِإِذۡنِ ٱللَّهِۖ

بېشکه زه جوړوم تاسې ته (ای بني اسرائیلو) ! له خټو څنې په شان د شکل د مرغه؛ نو پو کړم په دې (شکل) کې، پس کیږي (هغه شکل) مرغه (الوتونکی) په اذن (حکم) د الله سره.

**تفسیر:** یواځې د شکل او صورت جوړولو څخه په «خلق» سره تعبیر کول، تش ظاهري حیثیت دی، لکه چې په صحیح حدیث کې معمولي تصویر کښل په «خلق» سره تعبیر شوی دی: «أحیو ما خلقتم»، یا په الله باندې د «احسن الخالقین» اطلاق دا راوښوول چې دا لفظ یواځې د ظاهري صورت په لحاظ د ما سوی الله په نسبت ویل کېدی شي، که څه هم د تخلیق په لحاظ له الله تعالی څنې پرته بل هیڅ ته خالق نشي ویل کېدی، ښایي چې له همدې کبله یې داسې نه دي فرمایلي: «أني أخلق لکم من الطین طیرا» «زه له خټو څنې مرغه جوړوم» او داسې یې وفرمایل چې: «زه له خټو څخه د مرغه د شکل په شان جوړوم، او په هغه کې پو کوم، نو بیا هغه خټه د الله تعالی په حکم سره الوزي»، په هر حال دا معجزه یې دوی ته وروښوده.

وَأُبۡرِئُ ٱلۡأَكۡمَهَ وَٱلۡأَبۡرَصَ وَأُحۡيِ ٱلۡمَوۡتَىٰ بِإِذۡنِ ٱللَّهِۖ

او روغوم مورزادې (پیدائشي) ړوند، او پیس (برګک) او ژوندي کوم مړي په اذن (حکم) د الله سره.

**تفسیر:** په هغه زمانه (پېړۍ) کې د طبیبانو او حکیمانو ډېره ترقي او زور وو، نو مسیح علیه السلام ته داسې معجزې مرحمت شوې، چې د خلقو په منځ کې پر ګردو (ټولو) لویو طبیبانو باندې د ده تفوق او لویوالی ثبت کړي، او ګرد طبیبان د هغو له معالجو څخه عاجز وي، بلا شبهه د مړي ژوندي کول؛ د الله تعالی له صفاتو څنې دی، لکه چې د «باذن الله» له قیده صافه ښکاره ده، مګر د دې له امله چې مسیح علیه السلام د هغه وسیله ګرځېدلی دی، نو یې توسعا په خپل لوري نسبت کوي.

**تنبیه:** «معجزه» هغه ده چې د پاک الله د عمومي عادت په خلاف د نبوت د مدعي له خوا د خپل تصدیق لپاره ښکاره شي، نو که داسې نصوص واخیستی شي، چې د کوم شي په نسبت د الله تعالی عمومي عادت په کې بیان شوی وي، او بیا ترې داسې استدلال وکړي؛ چې په دې سره د معجزاتو نفي کیږي، بیخي له معجزاتو څخه انکار، او د خپل غباوت او حماقت اظهار دی، که «معجزه» له عمومي قانون او عادت سره برابره راشي، نو هغې ته به څوک «معجزه» وايي؟ د مسیح علیه السلام بې پلاره پیدا کېدل د ابرص او اکمه روغول، د مړي ژوندي کول، او د نورو معجزاتو ورښوول، د مسلمانانو په ګردو اخلافو او اسلافو کې یوه منلې شوې خبره ده، د اصحابانو رضي الله تعالی عنهم او تابعینو (رحمهم الله) په اقوالو کې یوه خبره هم داسې نشته، چې د مسیح علیه السلام د دې معجزاتو په نسبت څه تردد په کې ښکاره شوی وي.

وَأُنَبِّئُكُم بِمَا تَأۡكُلُونَ وَمَا تَدَّخِرُونَ فِي بُيُوتِكُمۡۚ

او خبروم زه تاسې په هغه شي چې تاسې (یې) خورئ ! او (خبروم زه تاسې) په هغه شي چې تاسې (یې) ساتئ په کورونو خپلو کې.

**تفسیر:** وروسته له دې نه په څینو غیبي شیانو باندې عام له دې چې د ماضي وي، که د مستقبل؛ تاسې خبروم، له عملي معجزې څخه وروسته د یوې علمي معجزې ذکر فرمایي.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۴۹﴾ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ

بېشکه په دې (معجزو) کې خامخا نښانه ده تاسې ته، که یئ تاسې مؤمنان (یقین لرونکي زما په نبوت) حال دا چې مصدق یم د هغه (کتاب) چې پخوا له ما (نازل شوی) دی چې تورات دی، او (بل راغلی یم تاسې ته) لپاره د دې چې حلال کړم لپاره ستاسې ځینې له هغو شیانو چې حرام کړی شوي وو په تاسې باندې.

تفسیر: یعنې د «تورات» تصدیق کوم، چې د پاک الله کتاب دی، او د هغه عمومي اصول او احکام پخپل حال باندې قایم پاتې دي، او د الله تعالی په حکم د دې زماني په تناسب سره څه جزئي او فرعي تغییرات پکې کېږي، مثلا د هغه ځینې احکام چې ډېر سخت او درانه وو لري کېږي، (لکه چې په موسوي شریعت کې د خالي د ورځې تعظیم، د ماهي او د اوښ د غوښې او د وازدې تحریم چې د ۸ جزء د الأنعام سورت په (۱۴۷) آیت او (۱۸) رکوع کې راغلي ، هغه ورته حلال شول، نو واک (اختیار) لرئ چې د هغه نوم نسخ ږدئ ! او که تکمیل؟

وَجِئْتُكُم بِآيَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۵۰﴾

او راغلی یم تاسې ته په (هر قسم) معجزې له (طرفه د) رب ستاسې، نو وویرېږئ تاسې له الله او ومنئ (وینا) زما (د الله په توحید او زما په اطاعت کې).

تفسیر: یعنې کله چې تاسې زما د صداقت دلائل ولیدل، نو اوس له الله جل جلاله څخه وویرېږئ ! او د هغه بندګي وکړئ ! او زما خبرې ومنئ !.

إِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۗ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴿۵۱﴾

بېشکه چې الله رب ځما دی او رب ستاسې دی؛ نو بندګي کوئ تاسې د ده ! هم دا لاره ده سمه صافه (رسوونکې مقصود ته).

تفسیر: یعنې له ګردو خبرو ځنې یوه خبره، او له ګردو اصولو یو اصل هم دا دی: هغه دا چې پاک الله ومنئ ! چې زما او ستاسې یو شان رب او پالونکی دی، (او د پلار او ځوی تعلقات او نور) په کې مه پیدا کوئ ! او دهغه بندګي وکړئ ! د الهي رضا موندلو سمه لاره هم دا توحید، تقوی، او د رسول اطاعت دی، بنايي چې تاسې پرې لاړ شئ ! چې هغه ته په ښه ډول سره ورسېږئ.

فَلَمَّا أَحَسَّ عِيسَىٰ مِنْهُمُ الْكُفْرَ

نو کله چې معلوم کړ عیسی (په محسوس ډول) له بني اسرائیلو څخه کفر (چې د مسیح د قتل اراده یې وکړه !).

تفسیر: یعنې مسیح علیه السلام وپوهېده چې دغه یهودان ځما دین نه مني، بلکه ځما په دښمنی او ضرر رسولو پسې لوېدلي دي.

قَالَ مَنْ أَنصَارِي إِلَى اللَّهِ ۖ

وویل (عیسی علیه السلام چې) څوک دي مددګاران ځما په طرف (لاره) د الله کې؟.

تفسیر: یعنې څما مله او ملګري شئ ! او د پاك الله د دين انتشار او تعميم او ترويج کې له ما سره مدد او مرسته (تعاون) وکړئ ! او زما له انصارو څخه شئ !.

قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنصَارُ اللَّهِ

وويل حواريونو: مونږ يو مددګاران د (دين د) الله !

تفسیر: له الله تعالى سره مدد کول دا دي چې د هغه دين ته راشئ، او د هغه دين ومنئ، او د انبياوو مرسته (ملګرتيا) او مدد وکړئ، لکه چې د مدينې منورې انصارو څمونږ د محمد رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلم او د حق دين په منلو کې خپلې مرستې ښکاره کړې.

آمَنَّا بِاللَّهِ وَاشْهَدْ بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿٥٢﴾

ايمان مو راوړی دی په الله، او شاهد شه ته (ای عیسی !) په دې چې بېشکه مونږ مسلمانان يو.

تفسیر: «حواريون» کومو کسانو ته ويل کيږي؟ مشهوره داده چې لومړی هغه دوه تنه چې د عيسى عليه السلام تابعان شول، دوبيان وو، او د کاليو (جامو) وينځلو له امله به خلقو دوی ته «حواريون» ويل، عيسى عليه السلام دوی ته وويل چې: کالي وينځل پرېږدئ ! راشئ ! چې زه تاسې ته د زړه وينځل دروښيم ! دوی له ده سره ملګري شول، وروسته له دې د ده دنورو ملګرو لقب هم داسې شو.

رَبَّنَا آمَنَّا بِمَا أَنزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُولَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشَّاهِدِينَ ﴿٥٣﴾

ای ربه څمونږ ! ايمان راوړی دی مونږ په هغه کتاب (انجيل) چې نازل کړی دی تا، او پيروي مو کړې ده د رسول (ستا عيسى عليه السلام) نو وليکه مونږ سره له شاهدانو (په وحدانيت او رسالت).

تفسیر: وروسته له دې نه چې د رسول په مخ کې يې اقرار وکړ، د الله جل جلاله په حضور کې يې هم داسې اقرار وکړ، چې «مونږ پر انجيل باندې ايمان راوړی دی، او ستا د رسول متابعت مو هم کړی دی، نو ته پخپل فضل او توفيق او کرم سره څمونږ نومونه د منونکو په فهرست کې وليکه ! او څمونږ د ايماندارۍ تصديق وفرمايه، او هسې توفيق را په برخه کړه چې تل په ايمان باندې ټينګ اوسو، او څمونږ د بيا کافر کېدلو احتمال له سره پاتې نشي».

وَمَكَرُوا وَمَكَرَ اللَّهُ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿٥٤﴾

او مکر وکړ کفارو (په عيسى باندې) او مکر وکړ الله، او الله خير (بهتر) د ماکرينو دی.

تفسیر: «مکر» لطيف او خفيه تدبير ته وايي، که دا پټ تدبير د ښو کارونو لپاره وي، ښه دی، او که د بدو کارو لپاره وي، نو بد دی، نو ځکه په ﴿وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ﴾ کې يې له «مکر» سره «سيئ» قيد زيات کړی دی، او دلته الله جل جلاله ته «خير الماکرين» ويلی شوي دي، مطلب دا دی: يهودانو د عيسى عليه السلام په مخالفت کې راز راز پلمې (منصوبې) او سازشونه او د پټو تدبيرونو جوړول شروع کړل، تر دې چې د پاچا غوږونه يې د مسيح عليه السلام له مخالفت نه ډک کړل، او داسې يې وويل: «دا سړی معاذ الله ملحد دی، او غواړي چې «تورات» بدل کړي، او ګرد خلق د يهودانو له دين څخه واړوي»، پاچا د مسيح عليه السلام د نيولو امر صادر کړ، هلته داسې خبرې کېدې، او دلته د الله تعالى لطيف او خفيه تدبير د هغوی په ماتولو کې خپل کار کاوه، چې د هغه ذکر وروسته راځي، بېشکه د الله تعالى تدبير له ګردو څخه داسې ښه، کلک، بهتر او مضبوط دی، چې هيڅوک هغه تدبير نشي ماتولی.

إِذْ قَالَ اللَّهُ يَٰعِيسَىٰٓ إِنِّى مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَىَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ
اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَٰمَةِ ثُمَّ إِلَىَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ
تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِى الدُّنْيَا وَالْءَاخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن
نَّٰصِرِينَ ﴿٥٦﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّٰلِمِينَ ﴿٥٧﴾

(یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وویل الله: ای عیسی ! بېشکه زه اخیستونکی یم تا لره (له ځمکې) او پورته بېوونکی یم تا لره طرف ځما ته، او پاکوونکی (لرې کوونکی) یم تا لره له هغو کسانو څخه چې کافران (منکران) شوي دي او ګرزونکی یم دهغو کسانو چې متابعت یې کړی دی ستا؛ د پاسه د هغو کسانو چې کافران (منکران) شوي دي؛ تر ورځې د قیامته پورې، بیا (خاص) طرف ځما ته دی راتګ ستاسې، او زه به حکم وکړم په منځ ستاسې کې په هغه شي کې چې وئ تاسې چې په هغه کې اختلاف به مو کاوه.

نو هر هغه کسان چې کافران شوي دي، نو زه به په عذاب کړم دوی په عذاب سخت سره، په دنیا او په آخرت کې، او نه به وي دوی ته هیڅ مدد کوونکی (د عذاب په دفع کې).

او هر هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) نو پوره به ورکړي (الله) دوی ته اجرونه (د عملونو) د دوی، او الله محبت نه کوي ظالمانو سره.

تفسیر: کله چې یهود سره را ټول شول، او د هغوی پاچا د عیسی علیه السلام د وژنې او په دار کولو فیصله وکړه، نو الله تعالی ددې په مقابل کې عیسی علیه السلام ته ډاډه ورکړ، چې دوی تاته هیڅ ضرر نشي رسولی، بلکه تا به زه روغ رمټ اسمان ته پورته کړم، او بیا به په مقرر وخت کې بېرته ځمکې ته راشې، او هغه مقصد به پوره کړې، د کوم لپاره چې ته لېږل شوی یې، او هغه څوک چې ستا پیروان دي؛ په نورو به یې سر لوړي کړم، او بیا به په اخرت کې ستاسو تر منځ په خلافي مسائلو کې فیصله وکړم.

د ﴿فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِى الدُّنْيَا﴾ څخه معلومېږي، چې دا وعده په دنیا کې تر سره کېږي، او مؤمنانو ته به دنیوي او أخروي أجرونه ورکول کېږي، د «اهل السنت والجماعت» عقیده دا ده چې کله یهودو د عیسی علیه السلام د وژنې پرېکړه وکړه، نو الله تعالی هغه ژوندی اسمان ته پورته کړ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم متواتر أحادیث په دې دلالت کوي چې کله دنیا له کفر او ظلم څخه ډکه شي، نو الله تعالی به عیسی علیه السلام د محمد صلی الله علیه وسلم په شریعت او دهغه دنفاذ لپاره دنیا ته راوه لېږي، بیا به عیسی علیه السلام دجّال او د هغه پیروان یهود مړه کوي، تر دې چې کاڼي او بوټي به مسلمان رابلي، چې راشه، زما تر شا یهودي پټ دی، مړ یې کړه.

عیسی علیه السلام به صلیب مات کړي، خنزیران به ووژني، او د مسلمانانو تر منځ به خلاف ورک شي، او د الله تعالی حق دین به په نړۍ کې نافذ شي.

د ﴿مُتَوَفِّيكَ﴾ په اړه د یادونې وړه ده چې «أبو البقاء الكفوي» په خپل کتاب «کلیات» کې وایي چې: «توفي» په عام استعمال کې د مړ کولو، او روح اخیستلو په معنی استعمال شوې ده، او د بلغاوو په استعمال د پوره اخیستلو په معنی دی، او «توفّي» د مرګ په معنی هم ځکه راځي چې په مرګ سره کوم خاص غړی نه بلکه روح له پوره بدن څخه اخیستل کېږي، لکه چې خرنګه چې د بلغاوو اصطلاح ده، نو د عیسی علیه السلام روح د بدن سره پوره آسمان ته خېژول شوی دی، خو هر کله چې داسې واقعات کم وي؛ چې روح او بدن دواړه دې الله تعالی پورته کړي، لکه د عیسی علیه السلام په شان، او په مقابل کې یې یواځې دروح اخیستل غالب وو، نو ځکه د «توفي» استعمال په مرګ کې ډېر کېږي،

او غالبا ورسره د «موت» لفظ ذکر کيږي، لکه په: ﴿اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا﴾ (الزمر ۴۲)، دلته د توفي النفس دوه صورتونه ياد شوي دي، يو مرګ، او بل خوب، همدا راز په ﴿يَتَوَفَّاكُم بِاللَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُم﴾ دلته د «توفي» اطلاق په خوب باندې شوى دى، چې د پوره روح قبض هم په کې نشته، نو له دې کبله که د «آل عمران»، او «المائدة» سورتونو په دوو آيتونو کې ((توفي)) د رفع الروح مع البدن په معنی شي، نو کوم ناشونی کار نه دى، او خصوصا همدا د جمهورو قول هم دى، او د ابن عباس رضي الله عنهما څخه په صحيح روايتونو کې ثابت دي، چې عيسى عليه السلام ژوندى اسمان ته خېژول شوى دى، او د هغه له ژوندي پورته کېدو او په آخره زمانه کې بېرته دنيا ته راتللو څنې انکار له هيڅا سلف او خلف څنې منقول نه دى، بلکه امام ابن حجر عسقلاني په تلخيص الحبير کې په دې باندې اجماع نقل کړېده، او له ده څه پخوا امام ابن کثير، او نورو د عيسى عليه السلام د نزول احاديثو ته متواتر ويلي دي.

ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ﴿۵۸﴾ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿۵۹﴾

دا (چې تېر شول) مونږ يې لولو پرتا (اى محمده !) له آيتونو او دين (يا پند ياقرآن يا لوح محفوظ) محکم څخه (چې هيڅ تغيير او تبديل نه لري).

بېشکه مثل (صفت) د عيسى په نزد د الله په شان د مثل (صفت) د آدم دى، چې (الله) جوړ کړ هغه (آدم) له خاورو څخه بيا يې وويل ده (آدم) ته (بشر) شه ! پس (بشر) شو.

تفسير: نصرانيانو په دې خبره څمونږ له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ډېرې جګړې وکړې چې عيسى عليه السلام بنده نه دى، بلکه د الله تعالى ځوى دى، نو په آخر کې يې وويل: «که عيسى د الله ځوى نه دى نو ته ووايه چې پلار يې څوک دى؟» نو د دوى په ځواب کې دا آيت نازل شو چې آدم عليه السلام خو نه پلار درلود (لرلو) او نه مور، نو که اوس عيسي عليه السلام پلار نه لري، نو دا د الله جل جلاله د قدرت په مقابل کې کومه عجيبه خبره نه ده «موضح القرآن»، نو په دې حساب سره ښايي چې آدم عليه السلام ته د الله جل جلاله زوي ووايه شي، څکه چې ستاسې په زعم دلته زورور دلائل شته، حال داچې د دې خبرې ويونکى هيڅوک نه دي.

الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُن مِّنَ الْمُمْتَرِينَ ﴿۶۰﴾

حق (هغه دى چې) راغلى دى له جانبه د رب ستا (د عيسى په شان کې) نو مه کېږه له شک کوونکو څخه.

تفسير: يعنې د مسيح عليه السلام په نسبت کومه خبره چې الله جل جلاله فرمايلې ده هغه داسې حقه ده، چې د شک او شبهې هيڅ ځاى په کې نشته، او په صحيح او حقيقي خبره باندې په پوره ډول سره دوى وپوهول شو.

فَمَنْ حَاجَّكَ فِيهِ مِن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ أَبْنَاءَنَا وَأَبْنَاءَكُمْ وَنِسَاءَنَا وَنِسَاءَكُمْ وَأَنفُسَنَا وَأَنفُسَكُمْ ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَل لَّعْنَتَ اللَّهِ عَلَى الْكَاذِبِينَ ﴿۶۱﴾

نو هر څوک چې جګړه کوي له تا سره په (باره د) عيسى کې وروسته له هغه چې حاصل شو تا ته (صحيح) علم (د عيسى په بندګى او نبوت) نو ووايه (اى محمده ! دوى ته) راځئ ! چې راوبولو ځامن څمونږ، او ځامن ستاسې، اوښځې څمونږ، او ښځې ستاسې، او ځانونه خپل، او ځانونه ستاسې، بيا به التجا عاجزي وکړو (په دعا کې) نو وبه ګرځوو مونږ (وبه وايو) لعنت د الله په دروغجنانو باندې.

تفسير: الله تعالی حکم وفرمايه: که د نجران نصرانيان سره له دومره پوهولو بيا هم ونه پوهيږي، نو له دوی سره «مباهله» وکړه ! چې د هغې لپاره داسې يو مؤثر او مکمل صورت تجويز کړی شو، چې دواړه ډلې دې له خپل اولاد سره حاضرې شي ! او د زړه له کومې دې په ډېر اصرار او عاجزۍ سره داسې دعاوې وکړي: «هر يو له موږ څخه چې دروغ وايي په هغه باندې دې دالله تعالی لعنت او عذاب ولوېږي !».

دا د «مباهلې» اقدام په اول سر کې د دې خبرې اظهار کوي چې کومه ډله تر کومې اندازې پورې په خپلو زړونو کې پخپل صداقت او حقانيت باندې باور او يقين لري؟ لکه چې د «مباهلې» د دعوت له اورېدلو څخه وروسته د نجران جرګې مهلت واخيست، او ويې ويل چې: «موږ په دې مورد کې مشوره سره کوو بيا به ځواب وايو»، د مشورې په معرکې کې د دوی پوهانو او تجربه کارانو وويل چې: «ای د نصرانيانو ډلې ! تاسې پخپلو زړونو کې په يقين سره پوهېږئ؛ چې دا محمد نبي مرسل دی، او مسيح عليه السلام د ده په نسبت صافې فيصلې او ښکاره خبرې کړې دي، او تاسې ته دغه خبره هم ښکاره ده، چې الله د اسماعيل عليه السلام په اولاده کې د نبي د لېږلو وعده کړې ده، او هيڅ لرې نه ده چې دا به همغه نبي وي، نو له نبي سره د کوم قوم د مباهلې او ملاعنې کولو همدا نتيجه کېدی شي چې د هغه هيڅ يو لوی او وړوکی د الله تعالی له عذاب څخه نه خلاصيږي، او د نبي د لعنت اثر تر ډېرو نسلونو پورې پاتې کيږي.

ښه خو به دا وي چې اوس موږ له ده سره روغه وکړو، او د خپلو کليو په لوري بېرته لاړ شو، ځکه چې له ګردو عربو سره د جنګ کولو قوت په موږ کې نشته».

د نجرانيانو د جرګې ګردو سړيو همدا تجويز ومانه، او ځموږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لوري ورروان شول، په هم دې وخت کې محمد صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلم سره له حسن، حسين، فاطمې، او علي المرتضی رضي الله تعالی عنهم اجمعين د باندې وتل.

کله چې د نجرانيانو د لوی پادري سترګې په دې نوراني صورتونو باندې ولګېدې، بې واکه يې وويل چې: «زه هسې پاک نوراني صورتونه وينم، چې د دوی په دعا به غرونه له خپل ځايونو څخه وخوځولی شي، هسې نه چې د دوی له «مباهلې» څخه موږ هلاک شو، او نه چې د دوی د ښېرا له امله يو نصراني هم په ځمکه کې پاتې نشي»، بالآخر دوی مقابله پرېښوده او روغه يې سره وکړه، او کلنی «جزيه» يې ومنله، او صلحه يې سره وکړه، او بېرته ولاړل، د نبي صلی الله عليه وسلم حديث دی: «که نصرانيانو «مباهله» کړې وی نو دا ګرده وادي به اور ګرځېدلې وای، او پر دوی باندې به اور اورېده، او الله تعالی به نجرانيان په کلي ډول له منځه وړي وای، او د يوه کال په منځ کې به ګرد نصرانيان مړه شوي وای».

تنبيه: لوی قرآن دا نه دي راښوولي چې وروسته له رسول الله صلی الله عليه وسلم به هم د «مباهلې» صورت اختياراوه شي، که نه؟ او دا چې د «مباهلې» اثر به همغسې ظاهريږي لکه چې د محمد صلی الله عليه وسلم له «مباهلې» څخه ظاهرېدونکی وو؟ د ځينو اسلافو د عمل له طريقې او د ځينو حنفي فقهاوو رحمهم الله له تصريحاتو څخه معلوميږي چې: د «مباهلې» جواز تر اوسه پورې هم باقي دی، مګر په هغو شيانو کې چې د هغوی شرعي ثبوت بيخي قطعي وي، او دا خبره ضروري نه ده چې په «مباهلې» کې دې کوچنيان (ماشومان) او ښځې هم شاملې کړلی شي، او نه پر «مباهله» کوونکو باندې د هغه ډول عذاب راتلل ضروري وي، چې ځموږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم د «مباهلې» له امله راته، بلکه دا يو ډول د حجت اتمام دی، چې وروسته له هغه څخه د مناقشې ابواب تړل کيږي.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ ۚ

بېشکه دا (حال د عیسی او د مریمې چې تا ته بیان شو) خامخا دا بیان حق دی او نشته هیڅ بر حق معبود مګر یواځې الله دی.

تفسیر: د «مباهلې» له بلنې څخه دا راڅرګنده شوه، چې مباهله د دې لپاره وي چې هر هغه څه چې په قرآن کې د مسیح علیه السلام په باره کې ویلي شوي دي، هغه حق او رښتیا دي، او د الله تعالی دربار له هر ډول شرک او پلار او ځویتوب او نورو تعلقاتو څنې بیخي مبرا او پاک دی.

وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦٢﴾

او بېشکه الله خامخا هم دې ډېر غالب قوي دی (د احکامو په انفاذ کې) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: پخپل کامل قدرت او حکمت سره به د رښتین او دروغجن سره همغسې معامله وکړي، چې د هر یوه له حاله سره هغه وړ او مناسبه وي.

فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٦٣﴾

نو که وګرځېدل دوی (ایمان ته یې شا کړه او اسلامي احکام یې و نه منل) پس بېشکه الله ښه پوه دی په فساد کوونکو (نو جزا به ورکړي دوی ته).

تفسیر: که نه یې په دلائلو سره منې او نه «مباهلې» ته تیارېږي، نو پوه شه چې د دوی مقصود د حق اثبات نه دی، او نه پخپلو زړونو کې د خپلو عقایدو پر صداقت باندې څه یقین او باور لري، یواځې فتنه او فساد خورول د دوی مطلب دی، نو ته ښه وپوهېږه چې ګرد مفسدان د الله تعالی تر نظر لاندې دي (او بې له مجازاتو یې له سره نه پرېږدي).

قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ ۚ

ووایه (ای محمده !) چې ای اهل کتابو ! راشئ تاسې په طرف د یوې کلمې (خبرې)، چې برابره ده په منځ ځمونږ او ستاسې کې (او هغه دا ده) چې عبادت به نه کوو مګر یواځې د الله، او شریک به نه نیسو په الله پورې هیڅ شی، او نه به نیسي ځینې ځمونږ ځینې نور معبودان غیر له الله (لکه چې تاسې کتابیان احبار او رهبان نیسئ).

تفسیر: کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اهل کتاب توحید او د یوه الله عبادت ته راوبلل، نو هغوی وویل چې: مونږ خو الله تعالی منو، او مسلمانان یو، نو ځکه یې ورته وویل: چې کله مونږ او تاسو په دعوا کې او د الله تعالی په منلو کې شریک یو؛ نو راځئ چې په نصوصو کې تحریف پرېږدو، او د الله تعالی څخه پرته د بل هیچا بندګي او عبادت ونکړو، او د الله تعالی سره په بندګۍ کې او نورو مخصوصو صفاتو کې بل شی شریک نه کړو، که هغه نبي وي، ولي وي، مرشد او پیر وي، او که فقیر وي، او دوی ته د ألوهیت حقوق او صفات ورنکړو، لکه: حلالول، حرامول، کوم چې د اهل کتابو خاص صفت وو، لکه چې الله تعالی فرمایي: ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ (د التوبه سورت، ۳۱ آیت).

فَإِن تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ﴿٦٤﴾

نو که وګرځېدل دوی (له توحید، او اسلامي احکامو ته یې شا واړوله) پس ووایئ تاسې (ای مؤمنانو کتابیانو ته چې) شاهدان شئ تاسې په دې چې په تحقیق مونږ مسلمانان یو (او تاسې نه یئ).

تفسیر: یعنی ای کتابیانو ! تاسو د توحید او د اسلام له دعوي سره د الله تعالی ځینی غاړی غړوی، او مونږ مسلمانان الحمد لله په هغی باندی ټینګ ولاړ یو، او خپل ځانونه یو الله ته سپارو او د هغه فرمان منو، او تاسي د خپل نبی حکم نه منی.

يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لِمَ تُحَاجُّونَ فِي إِبْرَاهِيمَ وَمَا أُنزِلَتِ التَّوْرَاةُ وَالْإِنجِيلُ إِلَّا مِن بَعْدِهِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٦٥﴾ هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُم بِهِ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَاجُّونَ فِيمَا لَيْسَ لَكُم بِهِ عِلْمٌ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾

ای اهل د کتابو ! ولې جګړه کوئ تاسې (په شان د) ابراهیم کې (په دې شان چې هر یو له تاسې یې پخپل دین ګڼئ) حال دا چې نه دی نازل کړی شوی «تورات» او «انجیل» مګر (په سلهاوو کلونو) وروسته له ده، آیا نو هیڅ عقل نه لرئ تاسې (چې داسې چټي (بېکاره) خبرې کوئ؟). خبردار شئ ! تاسې هغه کسان یئ چې جګړه مو کړې ده (له ډېره حماقته) په هغه شي کې چې وو تاسې په هغه کې څه علم، نو ولې جګړه کوئ تاسې په هغه شي کې چې نشته تاسې لره په هغه کې هیڅ علم، حال دا چې الله پوهېږي (په هغه شي هم چې تاسې په کې جګړه کوئ) او تاسې نه پوهېږئ (جاهلان یئ).

تفسیر: لکه چې په توحید او د اسلام په دعوی کې ګرد سره مشترک وو، هم داسې د ابراهیم خلیل الله علیه السلام په تعظیم او تکریم کې هم ټول سره شریکان وو، او له یهودانو او نصرانیانو ځنې هرې ډلې بیله دعوی کوله چې ابراهیم علیه السلام ځمونږ په دین وو، یعنې (معاذ الله) یهودي یا نصراني وو، ددې ځواب یې داسې ورکړ چې «تورات» او «انجیل» چې د هغو پیروانو ته یهودي او یا نصراني وایي، په سلهاوو کلونو وروسته له ابراهیم علیه السلام ځنې نازل شوی دی، نو بیا ابراهیم علیه السلام ته یهودي یا نصراني څرنګه ویلی شي؟ بلکه په دې ډول چې تاسې یهودي یا نصراني یئ، په دې وصف او معنی پخپله موسی یا عیسی علیهما السلام ته هم یهودي یا نصراني نه ویل کېږي، او که دا مطلب وي چې د ابراهیم علیه السلام شریعت ځمونږ له مذهب سره ډېر نږدې وو، نو دا هم غلطه ده، څکه چې تاسې په دې باندې له کومه پوه شوئ؟.

دا خو ستاسې په کتابونو کې نشته، نو تاسې ولې په هغو مواردو کې جګړه کوئ؟ چې تاسې بیخي له هغو څخه بېخبره یئ، او له سره پرې نه پوهېږئ؟ الله تعالی ته ښه معلومه ده، چې ابراهیم علیه السلام څه وو؟ او نن په دنیا کې د کومې ډلې مسلک هغه ته ډېر نږدې دي؟

مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَٰكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٦٧﴾

(پاک الله د ابراهیم علیه السلام د پاکوالي په باره کې فرمایي چې) نه وو ابراهیم یهودي او نه نصراني، ولیکن وو دی حنیف (په حق ټینګ ولاړ، او له باطل څخه بېزاره) مسلمان (حکم منونکی د الله) او نه وو (ابراهیم) له مشرکانو نه.

**تفسیر:** یعني ابراهیم علیه السلام به خپل ځان «حنیف» یا «مسلم» باله، د «حنیف» معنی دا ده چې د حق په سمه لاره باندې برابر درومي، او نورې ګردې باطلې لارې پرېږدي، او د «مسلم» معنی حکم منونکی دی، نو اوس تاسې پخپله اټکل وکړئ! چې نن کومې ډلې له ګردو ځنې خپل غیر مشروع تعلقات شکولي (پرېکړي) دي؟ او د الله تعالی لاره یې ټینګه نیولې ده؟ او خپل ځان یې بیخي الله جل جلاله ته سپارلی دی؟ نو همغه به ابراهیم علیه السلام ته زیات اشبه او نږدې وي.

**تنبیه:** دلته په «مسلماً» کې د اسلام څخه خاص محمدي شریعت مرادول ضروري نه دي، ځکه چې معنی یې تش تسلیم، تفویض، او فرمان منل دي، چې هغه د ګردو انبیاوو دین دی، خو ابراهیم علیه السلام په دې خصوصیت سره دا نوم او لقب زیات روڼ کړی دی.

إِنَّ أَوْلَى ٱلنَّاسِ بِإِبْرَٰهِيمَ لَلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ وَهَٰذَا ٱلنَّبِيُّ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ۗ

بېشکه ډېر نږدې له خلقو نه ابراهیم ته خامخا هغه کسان دي، چې متابعت یې کړی وو د ده (یعنې خپل امت یې) او دا نبي (محمد) دی، او هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی (له محمدي امته).

**تفسیر:** الله تعالی راوښوده چې له ابراهیم علیه السلام سره د ده د زماني امت زیات مناسبت درلود (لرلو)، او په وروستنیو امتونو کې یې محمدي امت، د دغه پیغمبر امت هم په نامه او هم په دود او دستور کې له ابراهیم علیه السلام سره زیات مناسبت لري، او د دې امت پیغمبر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم خَلْقًا (په پیدایښت) خُلُقًا (په عادت) صورت او سیرت کې له ابراهیم علیه السلام سره ډېر زیات شبیه دی.

وَٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٨﴾

او الله ولي (دوست ناصر حافظ) د مؤمنانو دی (چې له دوی سره مرستې کوي، او ښه اجر ورکوي).

**تفسیر:** یعنې د خپلې لارې په حقانیت باندې د بل موافقت او مشابهت یوازې هلته دلیل راوړل کیږي، کله چې پخپله په ده باندې وحي نه راځي، نو الله جل جلاله د مسلمانانو «ولي» دی، چې دوی (مستقیما او په سمه لاره) د ده په حکم باندې درومي «موضح القرآن».

وَدَّت طَّآئِفَةٌ مِّنْ أَهْلِ ٱلْكِتَٰبِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٦٩﴾

دوست ګڼي هیله کوي یوه طائفه له اهل کتابو څخه د دې چې (په کوم قسم وښویوي) ګمراه کړي تاسې، او نه ګمراه کوي (په واقع کې، نه ښویوي) دوی مګر نفسونه خپل (چې عذاب او وبال یې هم دوی ته راجع کیږي) او (په دې) نه پوهیږي دوی.

**تفسیر:** پخوا یې ویلي وو: ﴿وَٱللَّهُ وَلِيُّ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾ دلته یې راوښوده، لکه چې د مؤمنانو «ولي» الله تعالی دی، نو ستاسې مکر او پلمې (منصوبې) پر دوی باندې هیڅ نشي چلېدی، بېشکه چې ځینې کتابیان غواړي چې د خپلو ځانونو په شان مسلمانان هم له سمې لارې ځنې واړوي، خو مسلمانان د دوی په جال کې نه نښلي، هو! دغه خلق خامخا پخپله ګمراهی او وبال کې زیادت کوي، او د دوی د دې اغوا کوونکو کوښښونو ضرر هم دوی ته بېرته ور رسیدونکی دی، چې په هغه باندې دوی اوس نه پوهیږي.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَأَنتُمۡ تَشۡهَدُونَ ۝٧٠

ای اهل کتابو ! ولې کافران (منکران) کېږئ تاسې په آيتونو د الله (قرآن) باندې حال دا چې تاسې شاهدان يئ (اقرار کوئ په حقانيت د کلام الله او نعمت د رسول الله).

تفسير: يعنې تاسې په «تورات» او نورو باندې قائلان يئ ! چې په هغو کې د «محمد صلى الله عليه وسلم» او دلوی قرآن په نسبت بشارتونه او زيري شته، او په هغو باندې تاسې ښه خبر يئ، او په پټو مرکو کې تاسې پر دې شيانو باندې اقرار او تصديق هم کوئ ! نو بيا ظاهرا او په ښکاره ډول ولې له هغو څخه مخالفت کوئ؟ او پر پاک قرآن باندې ولې ايمان نه راوړئ؟ او د خاتم الأنبياء تصديق د څه لپاره نه کوئ؟ ښه وپوهېږئ چې له قرآن عظيم الشأن څخه انکار په حقيقت کې له ټولو پخوانيو اسماني کتابونو څخه انکار دی.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ لِمَ تَلۡبِسُونَ ٱلۡحَقَّ بِٱلۡبَٰطِلِ وَتَكۡتُمُونَ ٱلۡحَقَّ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۝٧١

ای اهل کتابو ! ولې ګډوئ تاسې حق له باطلو (خپل دروغ له رښتيا آسماني کتابونو سره؟ او پټوئ تاسې حق (د محمد نبوت) حال دا چې تاسې پوهېږئ (په دې خلطولو او پټولو).

تفسير: دوی د «تورات» ځينې حکمونه د دنيوي غرضونو او مالونو له امله بيخي لغوه کړي وو، په ځينو آياتو کې يې لفظي تحريفات او د ځينو معنی يې بدله کړې، او ځينې شيان يې لکه د آخر الزمان نبي صلى الله عليه وسلم بشارتونه بيخي پټ کړي وو، او څوک يې پرې نه خبرول.

وَقَالَت طَّآئِفَةٞ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ ءَامِنُواْ بِٱلَّذِيٓ أُنزِلَ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَجۡهَ ٱلنَّهَارِ وَٱكۡفُرُوٓاْ ءَاخِرَهُۥ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ ۝٧٢

او وويل يوې طائفې له اهل کتابو (بلې طائفې ته) چې ايمان راوړئ په هغه (قرآن) ! چې نازل کړی شوی دی په هغو کسانو چې مؤمنان دي، (يعنې ای کتابيانو ايمان راوړئ) په اول د ورځې کې او کافران شئ (ای کتابيانو بيا) په آخر د ورځې کې؛ لپاره د دې چې دوی (يعنې مؤمنان هم لکه کتابيان) (له ايمانه) وګرځي.

تفسير: په دې آيت کې د کتابيانو د چالاکيو او د خيانتونو ذکر کيږي، چې يو له هغو څخه دا وو، چې د دوی ځينې سړي د ګهيځ (سهار) په وخت کې په ښکاره ډول سره مسلمانېدل، او له مسلمانانو سره به يې لمونځونه کول، او د ماښام په وخت کې به يې ويل: «مونږ له خپلو لويو لويو علماوو څخه تحقيق کړی دی، چې دا هغه رسول نه دی چې زيری يې راکړی شوی دی، او د تجربې له مخې هم د ده حالات د اهل الحق په شان را څرګند نه شول، نو ځکه له اسلامه څخه بېرته اوړو».

ښکاره ده چې نتيجه به داوی چې د هسې اوضاعو له امله به نور ډېر ضعيف الايمان کسان هم بېرته واوړي، او داسې به وګڼي چې ضرور به د اسلام په دين کې دوی څه نه څه عيب او نقص ليدلی وي، چې دې خلقو وروسته د هغه له منلو څخه له هغه څخه مخ واړاوه، او هم د عربو په جاهلانو کې د کتابيانو د علم او فضل لوی شهرت وو، نو ځکه داسې يو خيال هم پيدا کېده، چې که دا نوی مذهب حق وای، نو داسې پوهانو به غاړه ترې نه غړوله، بلکه له ګردو څخه به يې پخوا هغه منله.

وَلَا تُؤْمِنُوٓا۟ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ

اومه منئ تاسې (ای کتابیانو د هیچا) مګر د هغه چا چې متابعت یې کړی وي د دین ستاسې (چې یهودیت دی).

**تفسیر:** یعني هغه یهودان چې مسلمانانو ته د نفاق په ډول خپل ځانونه مسلمانان ښکاره کوي، دوی ته دې دا ښه معلومه وي، چې هغوی په رښتیا مسلمانان شوي نه دي، بلکه همغسې یهودان دي، او په اخلاص سره د هغو یهودانو خبرې اوري؛ چې د هغوی په دین باندې رهي (روان) دي، او د موسوي شریعت د اتباع دعوی کوونکي دي.

ځینو د ﴿وَلَا تُؤْمِنُوٓا۟ إِلَّا لِمَن تَبِعَ دِينَكُمْ﴾ معنی داسې کړې ده چې: «په ظاهري ډول سره تاسې ایمان راوړئ ! او خپل ځان مسلمان ښکاره کړئ ! دا دې یواځې د هغو خلقو لپاره وي چې ستاسې پر دین باندې ټینګ کوي»، یعني په دې تدبیر سره ښایي د خپلو هم مذهبانو ساتنه مو مقصود وي، چې دوی مسلمانان نشي، یا هغه کسان چې مسلمانان شوي، په دې چل او تدبیر سره بېرته مرتدان شي.

قُلْ إِنَّ ٱلْهُدَىٰ هُدَى ٱللَّهِ

(فرمایي الله چې ای محمده دوی ته) ووایه: بېشکه هدایت (حق دین) همدا هدایت د الله (اسلامي دین دی).

**تفسیر:** یعني هدایت خو د الله تعالی په ورکولو سره مونده کیږي، د هر چا په زړه کې چې الله تعالی د هدایت رڼا واچوي، هغه ستاسې په هسې چلونو او فریبونو نه ګمراه کیږي.

أَن يُؤْتَىٰٓ أَحَدٌ مِّثْلَ مَآ أُوتِيتُمْ أَوْ يُحَآجُّوكُمْ عِندَ رَبِّكُمْ

او دا (تدبیرونه ستاسې ای کتابیانو د حسد له مخې دي، په دې) چې ولې ورکړی شي یو چا ته په مثل د هغو (فضائلو) چې در کړی شوي دي تاسې ته، او (لپاره د بد ګڼلو د دې خبرې چې مؤمنان) حجت قائم کړي، او غالب شي پر تاسې په نزد د رب ستاسې (د حجت له مخې).

**تفسیر:** یعني هسې مکرونه او تدبیرونه یواځې د حسد له امله کوئ، هغه دا چې نورو ته داسې شریعت او نبوت او رسالت ولې ورکول کیږي؟ لکه چې پخوا دوی ته ورکړی شوی وو، یا په مذهبي او دیني جد او جهد کې نور خلق ولې پر تاسې باندې غالب او وړاندې ځي؟ او د الله تعالی په مخکې تاسې ملزم کوي.

یهودانو تل داسې خیالات شائع کول چې «په دنیا کې یواځې هم دا ځمونږ قوم د شرعي علومو اجاره داران دي، «تورات» پر مونږ باندې رانازل شوی دی، موسی علیه السلام غوندې یو أولوا العزم نبي په مونږ کې مبعوث شوی دی، نو د عربو امیانو له دې فضل او کمال سره څه تناسب لري؟».

مګر د «تورات» د (سفر استثناء) هغه عظیم الشأنه پخوانی وینا نشي غلطېدی چې په هغې کې دا راښوولي شوي وو چې الله تعالی به د بني اسرائیلو په ورونو بني اسماعیلو کې موسی علیه السلام غوندې د مستقل شریعت خاوند یو نبي راولیږي، او خپل کلام لوی قرآن به د هغه په خوله کې واچوي ﴿إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَٰهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا﴾ (۲۹ جزء د المزمل سورت ۱۵ آیت، ۱ رکوع) لکه چې بني اسماعیلو ته دا لوي دولت ور په برخه هم شو، او دوی د علم، فضل، حجت، برهان، او د مذهبي جد او جهد په میدان کې نه یواځې له بني اسرائیلو څخه، بلکه له ټولو نړیوالو څخه وړاندې تللي دي، فالحمد لله علی ذلک.

قُلْ إِنَّ الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾

ووايه (اى محمده !) چې بېشکه فضل (علم او حکمت) د الله په لاس کې دی، ورکوي يې هغه چا ته چې اراده يې وکړي، او الله پراخ دی (رحمت، فضل، او احسان د ده)، ښه عالم دی (د احسان په اهل هم). خاصوي په مهرباني خپلې (چې اسلام يا قرآن يا نبوت دی) هغه څوک چې اراده وکړي، او الله څښتن د فضل (مهرباني) ډېرې لويې دی (پر مؤمنانو باندې).

وَمِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ إِن تَأْمَنْهُ بِقِنطَارٍ يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ وَمِنْهُم مَّنْ إِن تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَّا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ إِلَّا مَا دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا

او ځيني له اهل کتابو څخه هغه څوک دي، که امين کړې ته دې په ډېر مال باندې، نو بېرته به وسپاري دا (مال) تاته، او ځيني له دوی څخه هغه دي، که امين کړې ته هغه په يوه دينار باندې، نو اداء به نه کړي دې دا دينار تاته، مګر که يې ته هميشه په ده ولاړ (لپاره د غوښتلو).

تفسير: د اهل کتابو د ديني خيانت او نفاق په سلسله کې د دنيوي خيانت ذکر هم راغی، چې له هغه ځني دا خبره هم راڅرګنديږي، هغه کسان چې د لږ شي له امله خپل نيتونه خرابوي، او د امانتدارۍ رعايت نه کوي، نو له دوی ځني څرنګه داسې هيله اوتوقع کېدی شي، چې په ديني معاملاتو کې امين ثابت شي، په دوی کې ډېر داسې کسان شته دي، چې که له هغو سره زيات مال لا څه؟ که يو دينار په اندازه طلا هم امانته کېښوده شي، نو لږ موده وروسته پرې منکريږي، او تر څو چې څوک د غوښتلو او تقاضا لپاره هر وخت د دوی په سر باندې ولاړ نه وي، نه يې ادا کوي.

مګر په دې کې شک نشته، چې دوی ټول سره يو شان نه دي، په دوی کې ځيني داسې کسان هم شته، که له هغوی سره د سرو زرو يوه لويه ډېرۍ هم کېښوده شي، نو يو بخرکی به هم ترې خيانت نه کړي، خو هم دا ښه معامله داران او امين کسان دي چې له يهوديت ځنې بېزار کيږي، او د اسلام په دائره کې ننوځي، لکه (عبد الله بن سلام) او نور رضي الله تعالى عنهم أجمعين.

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي الْأُمِّيِّينَ سَبِيلٌ

دغه (په امانت کې خيانت) په سبب د دې دی، چې بېشکه دوی (کتابيانو) وويل: نشته پر مونږ باندې په (حق) د دې اميانو کې هيڅ ګناه (چې مالونه يې وخورو).

تفسير: يعني د پرديو د حق خوړلو لپاره يې دا مسئله جوړه کړېده، چې «د عربي اميانو د مالونو خوړل چې څمونږ په دين کې نه دي داخل، په هر ډول سره چې څمونږ لاس ته راشي؛ روا دي، که د نورو مذاهبو په امانت مال کې خيانت وکړ شي، نو په هغه کې هم هيڅ ګناه نشته، مخصوصا هغه عرب چې د خپلو پلرونو له دين څخه ګرځيدلي او مسلمانان شوي دي، الله تعالى د هغوی مال مونږ ته حلال ګرځولی دی»، نو الله «جل وعلا شأنه» د دغو کتابيانو عتاب کې چې د داسې شيانو نسبت الله جل جلاله ته کوي، داسې فرمايي:

وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾

او وايي دوی (کتابيان) پر الله باندې دروغ (په دې دعوی کې) حال دا چې دوی پوهيږي (پخپلو دغو دروغو ترلو باندې).

تفسیر: یعني سره له پوهې په قصد سره دروغ خبرې الله جل جلاله ته منسوبوي، په امانت کې د خیانت کولو اجازه هیڅکله الله تعالی نه ده فرمایلې، نن هم ځمونږ د فقهي کتابونو مسئله همدا ده چې: «نه د مسلمان او نه د کافر په امانت کې خیانت جائز دی»، (بیا الله تعالی فرمایي):

بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۷۶﴾

(ولې نشته عذاب) بلکه شته ! هو هر څوک چې وفا وکړي په عهد خپل (چې ایمان په نبي او د امانتونو ادا کول دي) او پرهېزګاري وکړي (ځان وساتي له کفر او خیانته) نو بېشکه الله مینه او محبت کوي پرهېزګارانو سره.

اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۷۷﴾

بېشکه هغه کسان چې اخلي دوی په عهد د الله باندې (چې ایمان په نبي او اداء د امانت دی) او په (دروغو) قسمونو خپلو باندې قیمت لږ (دنیوي، د هغه د نه منلو په عوض)، دغه کسان نشته هیڅ برخه د دوی لپاره په آخرت کې، او نه به خبرې وکړي له دوی سره الله (په خوښی) او نه به وګوري دوی ته (الله په رحم سره) په ورځې د قیامت کې، او نه به پاک کړي دوی (الله له کفره) او (شته) دوی ته عذاب دردناک (په سبب د دغو بدو افعالو د دوی).

تفسیر: دا د یهودانو صفت وو چې «الله تعالی له دوی څخه اقرار اخیستی وو، او دوی ته یې قسمونه ورکړي وو، چې له هر نبي سره به مرستې کوي !» بیا دوی د دنیوي مقاصدو له امله له هغه څخه واوښتل، او هر هغه څوک چې د دنیوي ګټې اخیستلو لپاره په دروغو قسمونه خوري؛ د ده حال هم دا دی.

وَاِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيْقًا يَّلْوٗنَ اَلْسِنَتَهُمْ بِالْكِتٰبِ لِتَحْسَبُوْهُ مِنَ الْكِتٰبِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتٰبِ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ

او بېشکه ځینې له دوی څخه خامخا یو فریق دی، چې اړوي دوی ژبې خپلې په (لوستلو د) کتاب کې لپاره ددې چې وګڼئ تاسې دا (محرف عبارتونه) له کتاب (حق منزّل نه) حال دا چې نه دي (دا محرف عبارتونه) له کتاب (منزل) څخه، او وایي دوی چې دا (محرف عبارتونه) له (جانبه د) الله دي، حال دا چې نه دي دا (محرف عبارتونه) له (جانبه د) الله.

تفسیر: یعني په اسماني کتاب کې یې ددغسي شیانو زیادت او حذف وکړ، او هغی ته به یې بیا دالله کلام ویلو او عوام به یې ورباندې تیر ایستل، خو دوئ پخپله هم دا تحریف شوی کتاب په مجموعي هیئت دالله تعالی کتاب نه ګاڼه ځکه په هغی کې یې قسم قسم تصرفات کړی وو، د (بایبل، انجیل) نسخې چې نن ورځ په دنیا کې شته، د هغوی په منځ کې هم داسې شدید اختلافات موندل کیږي، چې سړی ورته حق حیران پاتې کیږي، او داسې مضامین هم په کې لوستل کیږي چې سړی له واره پرې پوهیږي؛ چې دا هیڅکله د الله تعالی له جانبه نه دي نازل شوي.

وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ۝٧٥ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِي مِنْ دُونِ اللَّهِ

او وايي دوی (يعنې کتابيان) په الله باندې دروغ، حال دا چې پوهيږي دوی (پخپلو دروغ ويلو).
نه ښايي هيڅ بشر ته چې ورکړی ده ته الله کتاب او حکمت (شرعي احکام او سنت) او نبوت، بيا
ووايي خلقو ته چې: شئ تاسې بندګان (عبادت کوونکي) ما لره بې له الله څخه.

تفسير: د (نجران) د جرګې د خبرو او اترو په ترڅ کې ځينو يهوديانو او نصرانيانو ويلي وو: «اې محمده! آيا تاسې دا غواړئ چې مونږ ستاسې همغسې عبادت وکړو، لکه چې نصرانيان د عيسی بن مريم عليه السلام عبادت کوي؟» رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «معاذ الله چې مونږ د غير الله عبادت وکړو، يا نورو ته د هسې کارونو دعوت ورکړو، حق تعالی مونږ د دې کار لپاره نه يو راليږلي»، نو د دې خبرې په نسبت دا آيت نازل شو.

يعنې هر هغه بشر ته چې حق تعالی کتاب او حکمت او د فيصلې قوت ورکړي، او د رسالت په منصب باندې يې سر لوړی وګرځوي، چې دې په ډېر ښه ډول سره د الله تعالی پيغام نورو خلقو ته ورسوي، او د بندګۍ او د وفادارۍ په طرف يې متوجه کړي، د هغه کار هيڅکله داسې نشي کېدی، چې خلق د الله تعالی له خالصه بندګۍ څخه واړوي، او د خپل ځان يا د بل کوم مخلوق بندګۍ ته يې وبلي.

له همدې ځايه د انبياوو د عصمت مسئله څرګنديږي «كما نبه عليه أبو حيان رحمه الله في البحر».

کله چې انبياء عليهم السلام له ادنی عصيان څخه هم پاک دي، نو بيا د شرک او د پاک الله په مقابل کې د بغاوت امکان چېرې پاتې کيږي؟ له دې ځنې د نصرانيانو د هغې دعوی ترديد هم وشو، چې ويل به يې: «د مسيح عليه السلام د ابنيت او د ألوهيت عقيده مونږ ته پخپله مسيح عليه السلام راښوولې ده»، او هغو مسلمانانو ته هم نصيحت وکړل شو، چې هغوی د رسول الله مبارک حضور ته عرض کړی وو، چې مونږ ته اجازه راکړئ! چې د سلام اچولو په ځای تاسې ته سجده وکړو، او پر کتابيانو باندې هم تعريض وشو، چې هغوی خپلو احبارو او رهبانو ته د ألوهيت درجه ورکوله، العياذ بالله.

تنبيه: په ﴿مَا كَانَ لِبَشَرٍ﴾ الآيه - کې د أبو حيان «رحمه الله» په نزد هم داسې نفي ده، لکه چې په ﴿مَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُنْبِتُوا شَجَرَهَا﴾ کې، يا په ﴿وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ کې ده، وهو أصوب عندي (يعنې نفي د امکان).

وَلَٰكِنْ كُونُوا رَبَّانِيِّينَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ ۝٧٩

وليکن (وايي چې) شئ تاسې عالمان عاملان په سبب د دې چې يئ تاسې چې ښوونه کوئ (خلقو ته) کتاب (شرعي أحکام) او په سبب د دې چې يئ تاسې چې تدريس کوئ (او درس اخلئ، پخپله دا کتاب لولئ، او نورو ته يې هم لولوئ).

تفسير: يعنې: «هر هغه شوک چې د الله تعالی له جانبه په نبوت سره وستايل شي، او دې خلق له کفر او شرک څخه راباسي، او د مسلمانی په لوري يې راولي، نو بيا به دې څرنګه هغو ته کفر ورزده کوي؟ هو! تاسې ته (اې کتابيانو) داسې ويل کيږي، چې له تاسې ځنې هغه کسان چې پخوا له دې نه ديندار وو، اوس د هغوی په شان ديندار او د کتاب لوستونکي او زده کوونکي نه دي پاتې، او زما په صحبت کې اوس ممکن دي چې همغه کمال بيا حاصل کړئ! او عالم، حکيم، فقيه، مدبر، عارف، متقي، او ښه الله پرست شئ!، او دا شرف تاسې ته د لوی قرآن له لوستلو او لولولو او پوهېدلو څخه په لاس درتلی شي.

وَلَا يَأْمُرَكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ أَرْبَابًا

او نه کوي امر تاسې ته (الله يا نبي) د دې چې ونيسئ تاسې پرښتې او انبياء معبودان.

**تفسير:** لکه چې نصرانيانو مسيح عليه السلام او روح القدس عليه السلام ته او ځينو يهودانو عُزير عليه السلام ته او ځينو مشرکينو پرښتو ته معبودان ويل، هر کله چې پرښتې او رسولان له الله جل جلاله سره په عبادت کې نشي شريکېدی، نو تيرې، صليب اونور په کوم شمېر کې راځي.

أَيَأْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ إِذْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿۸۰﴾

آيا امر کوي (الله يا نبي) تاسې ته په کفر سره، وروسته له دې نه چې يئ تاسې مسلمانان (غاړه اېښودونکي شرعي احکامو ته).

**تفسير:** يعنې لومړی نبيانو کوښښ وکړ چې خلق رباني د الله خاص بندګان، موحدين، او مسلمانان وګرځوي، هر کله چې خلقو هغه ومانه، نو آيا هغوی بيا دوی د کفر او شرک په لوري بيايي، او خپل زيار (کوښښ) او ګرد زحمتونه په خپلو لاسونو سره ابته او بربادوي، دا خبره فهم ته نشي راتلی.

وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَاَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ إِصْرِىْ قَالُوٓا اَقْرَرْنَا قَالَ فَاشْهَدُوا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۱﴾

او (ياد کړه ای محمده !) هغه وخت چې واخيست الله عهد محکم له ټولو انبياوو چې خامخا هغه شی چې درکړم زه تاسې ته، چې هغه کتاب او حکمت (شرعي احکام او سنت) دی، بيا راشي تاسې ته رسول (محمد)، چې مصدق (رښتيا کوونکی) دی د هغه کتاب چې له تاسې سره دی، نو هرومرو به ايمان راوړئ تاسې خامخا په هغه، او هرومرو مدد به کوئ تاسې خامخا ورسره، وويل (الله دوی ته): آيا اقرار وکړ تاسې په دغه (ايمان او نصرت) او واخيسته (قبوله کړه) تاسې پر دې (ايمان او نصرت) ټينګه وعده ځما؟ وويل دوی: اقرار وکړ مونږ (په دې)، وفرمايل (الله): نو تاسې شاهدان اوسئ (پخپل نفس او اتباعو) او زه هم له تاسې سره له شاهدانو څخه يم (پر تاسې او په هغوی باندې په دې اقرار کې).

**تفسير:** يعنې هيڅ يو نبي د خپلې بندګۍ تعليم نشي ورکولی، بلکه د يوه الله جل جلاله بندګي ورښيي، هو ! رسولانو ته دا حق شته چې خلق دې پر دوی باندې هم ايمان راوړي، او د دوی خبرو ته دې غوږ کېږدي، او له دوی سره دې هر راز مرستې (مدد) وکړي، عام خلق لا څه بلکه الله تعالی له خپلو انبياوو عليهم السلام څخه هم داسې ټينګ عهد او پيمان اخيستی دی؛ چې هر کله له تاسې څخه وروسته کوم نبي راشي، چې يقينا د پخوانيو انبياوو عليهم السلام او د هغو د کتابونو به په اجمال يا په تفصيل سره تصديق کوي، نو ضروري خبره ده، چې لومړی نبي دې د وروستني نبي پر صداقت باندې ايمان راوړي، او د هغه مرسته دې وکړي !، که عمر يې د هغه زمانې ته ورسېږي، نو بالذات پخپله او که نه خپل امت ته دې پوره هدايت ورکړي، چې په وروستني راتلونکي نبي باندې هرومرو ايمان راوړئ، او د هغه نصرت او اعانت وکړئ، څکه چې داسې وصيت کول، هم د هغه په مرسته کې داخل دی.

له دې عامې قاعدې څخه د سپېڅې ورځې په شان ښکاره ده، چې ځمونږ په خاتم الأنبياء محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راوړل او د هغوی د مدد کولو عهد به بلا استثناء له ګردو پخوانيو انبياوو عليهم السلام څخه اخيستی شوی وي، او دوی له خپلو امتيانو څخه دا قول او اقرار اخيستی دی.

فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾

نو هر څوک چې بېرته وګرځېد وروسته له دې (د ايمان او نصرت له عهده) نو دغه (شا ګرځوونکي کسان) هم دوی فاسقان دي (چې عهد ته يې شا کړې ده).

اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ وَلَهٗٓ اَسْلَمَ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا

آيا نو غير له دين د الله څخه غواړي (دوی بل دين) حال دا چې (خاص) الله ته غاړه اېښې ده، هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي (له علوياتو) او په ځمکه کې دي (له سفلياتو، سره له آسمانونو او ځمکو) په خوښه يا په زوره.

تفسير: يعني هر کله چې د حق تعالى کوم حکم د صادق القول رښتين رسول په وسيله تاسې ته در ورسيږي، د هغه په مقابل کې غاړه کېږدئ! نو اوس کوم احکام او هدايات چې سيد المرسلين خاتم النبيين محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم راوړي دي، هغه هم د الله تعالى دين دی، آيا تاسې هغه پرېږدئ؟ او د نجات او فلاح بله کومه لاره لټوئ؟.

بنيادم ته نه ښايي چې پخپل شوق، مينه، رغبت، او خوښې سره د هغه پاک الله له احکامو څخه غاړه وغړوي، چې د هغه د تکويني حکم لاندې آسمان او ځمکه او ګرد موجودات دي، او د هغه دحکم په اثر موجود شوي دي، عام له دې نه چې هغه تکويني حکم د مخلوقاتو په اراده او خوښې سره وي، لکه د پرښتو او فرمان منونکو بندګانو په اطاعت کې، يا په مجبورۍ او ناچارۍ سره وي، لکه د دنيا په ذره ذره کې د هغو آثارو او حوادثو ظهور چې د هغوی وقوع او ظهور د مخلوق له مشيئت او ارادې څخه پرته وي، او يواځې د پاک الله د احکامو او مشيئت او ارادو تابع وي.

وَّاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾

او بيا (خاص) همدې الله تعالى ته بېرته بيولې کيږي (د اټول خلق د مجازاتو لپاره، نو ښايي چې ټول هدايت او اسلام ځانته غوره کړي).

تفسير: د ګردو لومړنيو او وروستنيو ورتګ د همغه پاک الله په لوري دی، نو عقلمن ته ښايي چې له پخوا څخه خپل ځان تيار کړي! او تل د الله تعالى په اطاعت اوعبادت کې مصروف اوسي! که نه په آخرت کې به بې مخه، مايوسه، شرمنده، او تيټ سترګی وي.

قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ
وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۸۴﴾

ووايه (ای محمده! کتابيانو ته چې) ايمان راوړی دی مونږ په الله، او په هغه کتاب چې نازل کړی شوی دی پر مونږ (چې قرآن دی) او پر هغو (صحيفو) چې نازلې کړی شوي دي پر ابراهيم او (پر) اسماعيل او (پر) اسحاق او (پر) يعقوب او (پر) اولاده (د دوی) باندې، او (پر) هغو چې ورکړی شوي دي موسی ته (چې تورات دی)، او عيسی ته (چې انجيل دی)، او نورو انبياوو ته

(چې نور آیتونه دي)؛ له (جانبه د) رب د دوی، (حال دا چې) نه کوو فرق په منځ د هیڅ یوه د دوی (په نبوت او نه نبوت کې، او داسې نه کوو چې ځینې به منو او ځینې به نه منو) او مونږ (خاص) الله ته غاړه ایښودونکي یو.

**تفسیر:** یعني هر هغه څه چې په هره زمانه کې د الله تعالی له جانبه نازل شوي، یا کوم رسول ته ورکړی شوي دي، مونږ هغه ګرد بلا تفریق منو، دا خبره د یوه حکم منونکي مسلم له وصف او شان څخه لرې ده، چې لکه کتابیان ځینې رسولان ومني، او ځینې ونه مني.

ګواکې په آخر کې یې د ﴿وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُوْنَ﴾ له ویلو څخه د اسلام حقیقت راوښود، او خبر یې راکړ چې اسلام د هیڅ یوه حقاني رسول او د هیڅ یو آسماني کتاب تکذیب نه کوي، بلکه ګرد شرعي احکام په ډېر محبت او اهتمام سره قبلوي، او د اسلام په نزد څرنګه چې د لوی قرآن او د عربي نبي علیه السلام نه منل کفر دی، هم داسې له بل کوم نبي علیه السلام او آسماني کتاب څخې انکار کول هم کفر دی.

بېشکه د نبي آخر الزمان صلی الله علیه وسلم شان ښایي چې هم داسې وي؛ چې دې د ګردو پخوانیو کتابونو او رسولانو مصدق شي، او په دې ډول سره هغه ګردو اقوامو ته چې د دوی لپاره محلي او مقامي (نذیر) او (هادي) راغلی وو، د «جمعیة الکبری» تر لویې جنډې لاندې دجمع کېدلو لاره وروښیي.

**تنبیه:** همداسې یو مضمون په اول جزء د «البقرة» سورت په (۱۳۶) آیت ۱۶ رکوع کې تېر شوی دی، ښایي چې دلته دې هم له همغه څخه استفاده وشي.

وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۸۵﴾

او هر څوک چې غواړي غیر له اسلامه (چې توحید او د الله احکامو ته انقیاد دی) بل دین، نو له سره به ونه منل شي له ده نه، حال دا چې وي به دی په آخرت کې له زیانکارانو (چې د اسلام د پرېښودلو په سبب به تل په دوزخ کې پاتې کېږي).

**تفسیر:** یعني هر کله چې د الله جل جلاله دین «اسلام» پخپل مکمل صورت سره راورسېد، نو وروسته له هغه هیڅ څوک کوم د دروغو یا نا مکمل دین نشي منلی، د لمر د راختلو څخه وروسته د تیلي، ډېوې، یا ګیس لګول یا د برېښنا او د ستوري د رڼا لټول چټي کار او ناپوهي ده، د محلي نبیانو د هدایت رڼا تېره شوه، اوس له ګردو څخې لوی او وروستني او عالمګیر نبوت او هدایت څخه رڼا اخیستل په کار دي.

كَيْفَ يَهْدِي اللّٰهُ قَوْمًا كَفَرُوْا بَعْدَ اِيْمَانِهِمْ وَشَهِدُوْٓا اَنَّ الرَّسُوْلَ حَقٌّ وَّجَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ۚ
وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۸۶﴾

څرنګه به سمه صافه لار وښیي الله (بلکه نه ښیي هغه) قوم ته چې کافران شوي دي وروسته له ایمان راوړلو د دوئ، حال دا چې شاهدي ورکړې ده دوی په دې چې بېشکه رسول حق دی، او راغلي دي دوی ته معجزې ښکاره، او الله نه کوي هدایت (نه ښیي سمه صافه لاره) قوم ظالمانو ته (چې اسلام په کفر بدلوي).

**تفسیر:** یعني هغه کسان چې د حق له ښکاره کېدو څخه وروسته سره له پوهې کفر اختیار کړي، یعني په زړه کې یقین لري، او په سترګو یې ګوري، بلکه پخپلو خاصو مرکو (جرګو) کې اقرار کوي چې؛ دا رسول رښتین دی، د ده

د حقانیت او صداقت روښانه دلیلونه، ښکاره علامې، او څرګند زیري دوی ته رسېدلي دي، خو سره له هغه هم کبر، حسد، حب د جاه او مال او نو ر د اسلام له منلو څخې د دوی مخه نیسي، او د کفر او عدوان له پرېښودلو څخه مانع کیږي، لکه چې د یهودیانو او نصرانیانو هم دا حال وو، له هسې معاندینو څخې چې سرزوري او ضدیت لري؛ څه توقع او هیله کېدی شي، چې سره له هسې رویې به دوی ته د الله تعالی له خوا نجات او فلاح ور په برخه کیږي؟ او دوی به په هسې لاره باندې بیایي چې دی ترې خوښ او دوی جنت ته رسوي؟

أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾

دغه کسان جزا د دوی دا ده چې بېشکه پر دوی دی لعنت د الله (چې لرې کوي دوی له رحمت خپل) او (لعنت) د پرښتو او (لعنت) د خلقو د ټولو (مخلوقاتو).

تفسیر: یعني الله تعالی، پرښتې، او مسلمانان ګرد لعنت پرې وایي، بلکه هر انسان حتی پخپله دغه ملعونان هم پر خپل ځان باندې لعنت وایي، یعني کوم وخت چې دوی داسې وایي: «پر ظالمانو او دروغ ویونکو باندې دې د الله لعنت وي !» اګر که دوی په هغه وخت کې په دې باندې نه پوهیږي، چې دا لعنت پخپله پر دوی باندې هم واقع کیږي.

خَالِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٨٩﴾

حال دا چې تل به وي دوی په دغه (لعنت یا اور یا عقوبت) کې، نه به سپکولی شي له دوی څخې عذاب (د دوزخ)، او نه به دوی ته مهلت ورکړ شي، (د توبې، یا به نه کتلی کیږي دوی ته په رحمت سره). مګر هغه کسان چې توبه یې وکښله (بېرته اسلام ته راوګرځېدل) وروسته له دې (ارتداده)، او نېک یې کړل (عملونه خپل)، نو بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّن تُقْبَلَ تَوْبَتُهُمْ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الضَّالُّونَ ﴿٩٠﴾

بېشکه هغه کسان (له یهودو) چې کافران شوي دي (په انجیل او عیسی) وروسته له ایمان راوړلو د دوی (په تورات او موسی)، بیا یې زیاتوالی وکړ په کفر کې (په نه منلو د قرآن او محمد)؛ له سره به نه قبلیږي توبه د دوی (چې دوی توبه ونه کړي تر غرغرې پورې)، او دغه کسان هم دوی ګمراهان دي.

تفسیر: یعني هغه کسان سره له دې چې په حق پوهیږي، او بیا په قصد سره ترې منکران شوي دي، اوتر آخره پورې په همغه انکار کې ترقي او پرمختګ کوي، نه له کفر څخې د مخ ګرځولو نوم اخلي، او نه د حق او د اهل حق له عداوته څخه لاس نیسي، بلکه حق خوښوونکو سره بحث، مناظره، جنګ او جنجال کوي، او کله چې د مرګ وخت ورسیږي، او پرښته د دوی سا راکاږي، دلته نو د توبې په فکر کې ولویږي.

یا کله د کوم شخصي مصلحت له امله په ښکاره ډول او په رسمي صورت سره توبه کوي، یا په کفر باندې پوره ټینګ ولاړ وي، خو له ځینو هغو اعمالو څخې توبه وباسي چې دې یې پخپل زعم سره ګناه ګڼي، نو له دغې توبې څخه هیڅ ګټه نه اخیستله کیږي، او نه د الله جل جلاله په دربار کې د هغې د منلو امید او انتظار کیږي، او داسې خلقو ته په رښتیا سره هسې توبه نه ور په برخه کیږي، چې د قبلولو وړ وي، تل تر تله د دوی کار: د ګمراهی په بیدیا (صحرا) کې لالهانده او سرګردان ګرځېدل دي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، او مړه شوي دي، حال دا چې دوی کافران دي؛ نو له سره به قبول نشي له یوه د دوی څخه په اندازه د ډکوالي د ځمکې سره زر.

**تفسیر:** یعني لکه د دنیوي حکومتونو په شان هلته د سرو او سپینو زرو په رشوت سره کار نه چلیږي، هلته خو یواځې د ایمان دولت پکار راځي، فرض یې کړئ ! که له یوه کافر سره د سرو زرو دومره لوی لوی امبارونه پراته وي، چې له هغو ځنې د ګردې ځمکې مخ ډک شي، او هغه بیخي خیرات کړي، نو د الله تعالی په دربار کې د یوې ذرې په اندازه هم هغه څه ارزښت او اهمیت نه لري، او نه په آخرت کې له داسې اعمالو ځنې څه فایده وررسیږي، ځکه چې د عمل روح ایمان دی، نو هر عمل چې له ایمان ځنې تش وي، هغه د مړ عمل په شان ګڼل کیږي، چې د آخرت په ابدي ژوندون کې هیڅ کار نه ترې اخیستل کیږي.

وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِ ۗ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٩١﴾

او اګر که فدیه ورکړې دې دغه (ټول سره زر) سره، دغه کسان (چې په کفر مړه دي) شته دوی لره عذاب دردناک، او نشته دوی لره هیڅ مددګاران (چې مرسته ورسره وکړي).

**تفسیر:** یعني فرض یې کړئ ! که له کافرو سره هلته دومره مال وي، او پخپله دی له خپل لوري دا وغواړي، چې هغه د فدیې په ډول الله جل جلاله ته وړاندې کړي، چې دا له ما ځنې واخله ! او ما پرېږده، نو بیا هم دا فدیه ترې نه منله کیږي، دا مقصد په ۶ جزء المائدة ۳۶ آیت، شپږمه رکوع کې هم راځي.

لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ ۚ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ ﴿٩٢﴾

له سره به ونه مومئ تاسې (پوره) نېکي، تر هغه پورې چې خرچ کړئ تاسې (په لاره د الله کې) ځینې له هغو شیانو چې ستاسې خوښ وي، او هغه چې خرچ کوئ (یې) تاسې له یوه شي (لږ وي که ډېر) پس بېشکه الله په هغه (هم) ښه عالم دی.

**تفسیر:** یعني الله جل جلاله ته معلوم دي چې تاسې څه شی او له کوم ځایه او د څه مقصد لپاره خرڅ کړی دی؟، څومره محبوب او په زړه پورې شیان چې په هره طریقه په اخلاص او ښه نیت سره چې د الله جل جلاله په لاره صرفوئ ! سم له هغه سره د الله تعالی له لوري تاسې ته هم د هغه بدل درکول کیږي، چې تاسې یې هیلمن (امیدوار) یئ ! که د اعلی درجې نیکي حاصلول غواړئ؟؛ نو له خپلو ډېرو محبوبو او ډېرو ګرانو شیانو ځنې څه شی د الله تعالی د لارې لپاره وټاکئ ! (مقرر کړئ).

كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَائِيلُ عَلَىٰ نَفْسِهِ مِن قَبْلِ أَن تُنَزَّلَ التَّوْرَاةُ ۗ

ټول طعام (د خوړلو شیان) وو حلال بني اسرائیلو (ځامنو د یعقوب) ته مګر هغه (طعامونه) چې حرام کړي وو اسرائیل (یعقوب) پر ځان خپل (د اوښانو له غوښو او شودو) پخوا له هغه چې نازل (لېږل) کېده تورات.

**تفسیر:** یهودانو ځمونږ (رسول الله صلی الله علیه وسلم) او مسلمانانو ته ویل چې: «تاسې خپل ځانونه د ابراهیم علیه السلام د دین تابعان بولئ ! حال دا چې تاسې داسې شیان خورئ چې هغه د الله تعالی له جانبه په ابراهیم علیه السلام او

د ده په کورنی حرام شوي وو، لکه د اوښې شودې او غوښې»، الله جل جلاله فرمايي: ټول هغه شیان چې اوس يې خلق خوري د ابراهيم عليه السلام په وخت هم حلال وو، او د «تورات» له نزوله پخوا نه وو حرام شوي، هو ! په «تورات» کې ځینې شیان په خاص ډول سره پر بني اسرائیلو باندې حرام شول، مګر د اوښ له غوښې ځنې پخوا د «تورات» له نزوله اسرائیل (یعقوب) علیه السلام قسم کړی وو، چې د ده په پیروی کردې اولادې يې د اوښ د غوښې د خوړلو ځنې ځانونه وساتل.

قُلْ فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿٩٣﴾

ووايه (ای محمده ! يهودانو ته) نو راوړئ تاسې (صحيح) تورات، پس ويې لولئ تاسې (د خپل تصديق لپاره) که يئ تاسې صادقان.

تفسیر: يعني که تاسې (رښتين يئ چې دا شيان د ابراهيم عليه السلام په وخت کې حرام وو، نو راشئ !او دا حکم پخپل منلي کتاب «صحيح تورات» کې راښکاره کړئ ! که په هغه کې مو راونه ښوده؛ نو په دې خبره کې د هيڅ شک او شبهې ځای نشته، چې تاسې کاذبان او مفتريان يئ !.

په روايتونو کې راغلي دي چې يهودان د دې زورور اعلان او بلنې استقبال ته حاضر نشول، او په دې طريقه سره ځمونږ د «نبي صلى الله عليه وسلم» په صداقت باندې يو بل دليل هم قائم شو.

فَمَنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٩٤﴾

(نو فرمايي الله) پس هر چا چې وتړل په الله دروغ وروسته له هغه (چې د حرمت، حجت، او جهت يې ښکاره شو) پس دغه کسان (چې حق پر پرېږدي او باطل خوښوي) هم دوی دي ظالمان.

تفسیر: يعني دا به لويه بې انصافي وي؛ که د دې حجت له ظهوره مو وروسته بيا هم تاسې په همدې باندې ټينګ اوسئ او وايئ چې: دا شيان د ابراهيم عليه السلام له زمانې راهيسې حرام دی، او مونږ د ابراهيمي دين اصلي پيروان يو.

قُلْ صَدَقَ اللَّهُ ۗ فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٩٥﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) رښتيا فرمايلي دي الله (په دې تحليل او تحريم کې هم) نو متابعت وکړئ تاسې د دين د ابراهيم چې حنيف وو (په حق ټينګ ولاړ او له باطل څخه بېزاره) او نه وو له مشرکانو.

تفسیر: يعني الله تعالى د حلالو او حرامو په نسبت او هم د محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم او د اسلام په باب کې هسې صافې صافې او رښتيا رښتيا خبرې اورولې دي، چې هغه هيڅوك دروغولی نشي، اوس ښايي چې تاسې هم د مسلمانانو په شان د ابراهيم عليه السلام د اصلي دين تابعان شئ !او د ابراهيمي اصولو متابعت وکړئ ! چې په هغه کې ډېر لوی شی خالص توحيد وو، او د عُزير عليه السلام، مسيح عليه السلام احبارو (علماء) او رهبانانو (پيرانو) عبادت پرېږدئ ! او پاخه موحدان مسلمانان شئ !.

إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ

بېشکه لومړنی کوټه (بيت الله) چې جوړه شوې ده (له ګردو نه پخوا د عبادت لپاره) خلقو ته خامخا (هغه کوټه) هم دا ده چې مکه کې ده.

**تفسیر:** د مسلمانانو په دې دعوی چې: مونږ له هر چا ځینې زیات ابراهیم علیه السلام ته نږدې یو؛ یهودو اعتراض کولو چې «د ابراهیم علیه السلام او د هغه د اولاد څخه راالیږل شوي پیغمبران خو په شام کې استوګن او بیت المقدس یې قبله وه، او تاسو په حجاز کې استوګن او کعبه مو قبله ده، نو د ابراهیم علیه السلام پیروي او نږدیوالې مو له کومه شو؟»».

جواب وشو چې له ټولو څنې لومړنی برکتي خونه (کور) چې د خلکو د مخ ګرځولو لپاره جوړه شوې ده؛ هغه همدا کعبه ده، چې په مکه مکرمه کې ده، او همدا د ابراهیم علیه السلام قبله وه، او مقام ابراهیم په هغې کې دی.

مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۶﴾ فِيْهِ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِيْمَ ۚ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ

حال دا چې برکت ناکه او لاره ښوونکې ده خلقو ته (د جنت). (شته) په دې کوټه کې آثار ښکاره (ځینې یې) مقام د ابراهیم دی، او هر څوک چې ننووت په دې (کعبه) کې نو شي به په امان کې.

**تفسیر:** حق تعالی له ابتداء څخه (بیت الله شریف) په ظاهري او باطني، حسي اومعنوي برکاتو سره معمور کړی دی، او د ګرد جهان د هدایت سرچینه یې ګرځولې دی، همدې ځای ته د (حج) د مناسکو د اداء کولو لپاره دجهان ګرد (ټول) انسانان ور دعوت شوي دي، د اسلام د جهان نیوونکي دین تابعان په مشرق او مغرب، شمال اوجنوب کې مامور دي چې د هم دې (بیت الله شریف) په لوري خپل مخونه وګرځوي، او لمونځونه اداء کړي، د دې په طواف کوونکو باندې د برکاتو او انوارو عجیب او غریب افاضات اوري، پخواني انبیاء علیهم السلام هم د حج د اداء کولو لپاره په ډېر شوق او ذوق سره تلبیه ویونکي له همدې شمعې پروانه کېدل، او تل تر تله د دې داخلېدونکي مأمون او مصون ګڼل کېدل، له دې سره نږدې د ابراهیم علیه السلام د مقام وجود دا راښیي چې دلته د ابراهیم علیه السلام پل (قدم) هم رسېدلی دی، او د هغه روڼ تاریخ (چې د ګردو «ټولو» عربو په نزد بې له انکاره منل شوی دی) دا راښیي، چې دا هم هغه تیږه (ګټه) ده، چې ابراهیم علیه السلام پرې درېده، او د (کعبې شریفې) دیوالونه یې جوړول، پر دغې تیږې (ګټې) باندې د ابراهیم علیه السلام د قدم اثر ثابت او تر نن ورځې پورې محفوظ پاتې دی.

وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۷﴾

او (واجب دی) الله لره پر خلقو حج (قصد کول په نیت د حج) د (دې) بیت (الله، دا) دی پر هغه چا چې قدرت لري طرف د ده ته د لارې، او هر څوک چې کافر شو (ویې نه مانه) نو بېشکه الله بې پروا دی له ټول عالم (یعني له هر چا او هر شي).

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۸﴾

ووایه (ای محمده !) ای اهل کتابو ! ولې کافران (منکران) کېږئ تاسې په آیتونو د الله، او الله ښه شاهد دی پر هغو کارونو (هم) چې تاسې یې کوئ.

**تفسیر:** یعني د حق او صداقت د واضحو دلائلو او د قرآن عظیم د داسې رښتیا او پخو خبرو له اورېدلو څخه وروسته په تاسې باندې څه شوي دي، چې سره له کتابیت پرله پسې د کلام الله او د هغه د راوړونکي په انکار باندې ټینګ ولاړ یئ؟ .

قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لِمَ تَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ تَبْغُونَهَا عِوَجًا وَأَنتُمْ شُهَدَآءُ ۗ وَمَا ٱللَّهُ بِغَٰفِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٩٩﴾

ووايه (اې محمده !) چې اې اهل د کتابونو ! ولې تاسې منع کوئ (اړوی) له لارې د الله څخه هغه څوک چې ایمان يې راوړی؟ لټوئ تاسې لارې د الله ته کوږوالی (عیب) حال دا چې تاسې يئ شاهدان (عالمان په حقانيت د محمدي دین)، او نه دی الله بې خبره له هغه شي نه چې تاسو يې کوئ (نو تاسې ته جزا درکوي).

تفسیر: يعني نه يواځې دا چې تاسې پخپله د ايمان د سعادت له حاصلولو څخې محروم يئ، بلکه غواړئ چې نور هم د الله تعالی له لارې څخې ستانه (واپس) کړئ ! او تاسې دا حرکتونه يواځې د جهل او ناپوهی له امله نه کوئ !، بلکه سره له پوهې په قصد سره يې کوئ، او سمې خبرې کږوئ، او تل د هم داسې نا مناسبو حرکاتو د جوړولو په فکر کې مشغول يئ، الله تعالی ستاسې له دې ګډو وډو، او کږو خبرو څخه بې خبره نه دی، او په مناسب وخت کې به د دې ګردو خبرو سزاوې يو ځای در کړي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تُطِيعُوا۟ فَرِيقًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ يَرُدُّوكُم بَعْدَ إِيمَٰنِكُمْ كَٰفِرِينَ ﴿١٠٠﴾

اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (اې مؤمنانو !) که تاسې حکم ومنئ د يوه فريق له هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب، نو بېرته به وګرځوي تاسې وروسته له ايمانه ستاسو کافران.

تفسیر: دلته مسلمانانو ته نصيحت کيږي، چې تاسې ولې د دې مفسدانو په دې اشارو باندې فرېب خورئ؟ د دوی له دې تېر ايستلو څخې ځان وساتئ ! که نه دا اندېښنه شته چې ورو ورو به تاسې د ايمان له رڼا څخې باسي، او د کفر په توره تياره کنده کې به مو غورځوي.

وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ وَأَنتُمْ تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُۥ ۗ وَمَن يَعْتَصِم بِٱللَّهِ فَقَدْ هُدِىَ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٠١﴾

او څرنګه به تاسې کافران کيږئ، حال دا چې لوستل کيږي پر تاسې آيتونه د الله، او دی په تاسې کې رسول د الله، او هر څوک چې منګولې ښخې کړي (د الله په دين) نو په تحقيق ښودنه وشوه ده ته په طرف د لارې سمې.

تفسیر: يعني هغه قوم چې د دوی په منځ کې پيغمبر صلی الله عليه وسلم تشريف لري، او شپه او ورځ د الله تعالی له جانبه دوی ته په زړه پورې خبرې آوروي، او د هغه روح پالونکي لوی آيتونه او مهم دلائل ښکاروي، نو ډېره لرې ده چې وروسته له ايمان راوړلو څخه داسې قوم بيا کافر شي، يا د کافرانو په شان کار وکړي.

فائده: د مديني منورې د انصارو دوو قبيلو «اوس» او «خزرج» پخوا له اسلامه پخپلو منځونو کې سخت عداوت او دښمني درلوده (لرله)، په ډېرو وړو وړو خبرو باندې به په داسې سختو جنګونو او وينو تويولو سره نښتل، چې تر کلونو کلونو پورې دا جنګ اوږدېده.

لکه چې د «بعاث» مشهور جنګ «۱۲۰» کلونو پورې اوږد شو، آخر د اسلام د تعليم او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د صحبت په اثر دغه دواړه قبيلې سره ملې، او پخپلو منځونو کې لکه شودې او شکرې شولې، او د اخوت او صميميت (دوستی) ډېر ټينګ تعلقات د دوی په منځ کې سره قائم شول.

د مدينې منورې يهودان د دې دواړو دښمنو او غليمو قبيلو په دې طريقه مينه او محبت ډېر خپه او غمجن وو، يو ړوند يهودي (شماس بن قيس) يو فتنه اچوونكى سړى ولمساوه چې ته په داسې يوې لوئې جرګې كې چې دا دواړه قبيلې سره په كې ناستې وي، په يو چم (چل) د (بعاث) د جنګ خبره وښوروه ! كله چې هغه فتنه اچوونكي سړي يوه مناسبه موقع پيدا كړه او د (بعاث) څو غيرت پاروونكي اشعار يې ولوستل، د دې اشعارو له اورېدلو څني سمدلاسه خبره د خولې له خبرو څني تېره او تر تورو او نېزو پورې ورسېده، مګر ښخوا له دې نه چې ويني تويې شي، رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د معظمو مهاجرينو له يوې ډلې سره پر موقع وررسېدل، او ويې فرمايل: «اى د مسلمانانو ډلې ! له الله تعالى څخه وويرېږئ ! زه ستاسې په منځ كى موجود يم، بيا دا د جاهليت خبرې او بلنې د څه لپاره كيږي؟ الله تعالى تاسې ته هدايت وكړ ! او په اسلام يې مشرف كړئ، او د ناپوهى له تيارو څنې يې وويستئ، نوآيا بيا تاسې د هغو كفرياتو او لغوياتو په لورې ژر بېرته ګرځئ؟ چې له هغو تورو تيارو څخه هم دا اوس د باندې وتلي يئ؟»، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې رسالت د مؤثرې وينا په اثر (اوس) او (خزرج) دواړو خپلې وسلې وغورځولې، او يو له بله سره يې په ډېره مينه، روغبړ، معانقه، او مصافحه وكړله.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٠٢﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو !) وويرېږئ له الله نه په حق وېرې د ده !، او مه مرئ مګر په دې حال كې چې يئ تاسې مسلمانان (موحدان).

تفسير: يعنې ستاسې مسلمانانو په زړونو كې ښايي د الله تعالى پوره وېره وي، او سم له خپله توانه د پرهېزګارۍ او تقوى له لارې لرې ولاړ نه شئ ! او تل د الله جل جلاله نه د استقامت غوښتونكي اوسئ.

وَٱعْتَصِمُوا۟ بِحَبْلِ ٱللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا۟ۚ

او منګولې ولګوئ (اى مؤمنانو !) په رسئ د الله (چې قرآن دى) ټول او مه سره مختلف كېږئ (وروسته له اسلامه).

تفسير: يعنې ګرد سره يو شئ ! او د پاک قرآن احكام ټينګ ونيسئ ! چې د پاک الله كلكه رسى ده، د «تمسك بالقرآن» مطلب داسې نه دى، چې پاک قرآن د خپل ځان او د خپلو آراوو ، هواوو، او د هوسونو تابع وګرځولى شي، بلكه د لوى قرآن صحيح مطلب هم هغه دى، چې د صحيحو احاديثو او د صالحينو اسلافو له متفقو تصريحاتو څنې مخالف نه وي.

وَٱذْكُرُوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِۦٓ إِخْوَٰنًا

او ياد كړئ تاسې (اى مؤمنانو !) نعمت (احسان) د الله پر تاسې، كله چې وئ تاسې دښمنان نو ألفت (مينه) يې پيدا كړه په منځ د زړونو ستاسې كې، نو وګرځېدئ تاسې په نعمت (رحمت) د الله سره (اسلامي) وروڼه.

تفسير: يعنې د سلهاوو كلونو عداوتونو او كينې يې له منځه وركې كړې، او الله تعالى د خپل محبوب رسول الله صلى الله عليه وسلم په سبب تاسې اسلامي خواږه وروڼه سره وګرزولى چې د هغه په اثر ستاسې دين او دنيا سم شول.

وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا

او وئ تاسې په غاړه د کندې له اوره (د دوزخ، په سبب د گمراهۍ او کفر) نو خلاص يې کړئ تاسې له هغه (اور په اسلام سره).

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

هم داسې (لکه چې د اتفاق مفاد او د نفاق ضرر يې بيان کړل) بيانوي الله تاسې ته دلائل خپل لپاره د دې چې تاسې په سمه صافه لاره ثبات او دوام ومومئ !

تفسير: يعني د دې خبرو له داسې ښکاره او صاف ويلو څخه دا مقصود دی، چې تاسې تل په سمه او صافه لاره باندې لاړ شئ ! او دهسې مهلکو او خطر لرونکو غلطيو بيا اعاده ونه کړئ ! او د هيڅ شيطان په اغواء سره د استقامت لاره پرې نه ږدئ !.

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

او وي دې (تل) له تاسې څخه يوه ډله چې بولي (خلق) په طرف د خير (اسلام) او امر (حکم) کوي (خلقو ته) په معروف (نېکۍ) سره او منعه کوي (خلق) له منکر (بدۍ) نه، او دغه (آمرين بالمعروف ناهين عن المنکر) هم دوی دي په مراد رسيدلي او کامياب.

تفسير: يعني تقوی، اعتصام بحبل الله، اتحاد، اتفاق، او اسلامي مؤاخات دا ټول هلته باقې پاتې کېدی شي، چې په مسلمانانو کې يوه ډله خاص د دعوت او ارشاد لپاره وي، او د دې ډلې وظيفه هم دا وي، چې د خپل قول او عمل په وسيله د دنيا اهل د قرآن او سنت په لوري وبولي، او کله چې خلق په ښو کارونو کې سست يا په خرابو کارونو کې اخته ووينې، نو دوی د نېکۍ په لوري وبولي، او متوجه يې کړي، او له بدو کارونو څخه يې وژغوري (وساتي)، او په دې کار کې د خپل توان او قدرت په اندازه کوتاهي ونه کړي !.

ښکاره ده چې دا کار هم هغه کسان کولی شي چې د معروف او منکر په علم باندې خبر وي، او د قرآن او سنت له پوهې سره، هوښيار، ذکي، موقع پېژندونکی هم وي، که نه امکان لري، چې يو جاهل سړی به معروف منکر، او منکر معروف وگڼي، او د اصلاح په ځای به گرد (ټول) نظام خراب او مختل کړي.

يا به د يوه منکر اصلاح داسې کوي، چې له هغه څخه نور ډېر منکرات پيدا کيږي، يا د نرمۍ په ځای به سختي او د سختي په ځای کې به نرمي کوي.

ښايي له همدې امله له مسلمانانو څخه يو مخصوص جماعت د همدې کار لپاره مأمور کړی شوی دی، چې له هره پلوه دوی د «دعوت الی الخير» او «امر بالمعروف» «نهي عن المنکر» وړ او لايق وي، چې نبوي حديث کې راغلي دي، «کله چې خلق په منکراتو کې اخته شي، او هيڅوک نه وي چې دوی له هغو څخه وژغوري (وساتي)، نو د عمومي عذاب د راتگ انديښنه شته».

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ۚ وَأُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ۝

او مه کېږئ تاسې په شان د هغو کسانو چې سره جلا (جدا) شول، او اختلاف (جګړې) يې وکړې د دين په اصولو کې وروسته له هغه چې راغلي وو دوی ته دلائل ښکاره (د اسلام د حقيقت)، او دا (متفرقان مختلفان مقرر دي) دوی ته عذاب ډېر لوی (د دوزخ).

**تفسير:** يعني لکه يهودانو او نصرانيانو غوندې مه کېږئ چې د الله تعالی د صافو او ښکاره وو احکامو له رسېدلو څخه وروسته بيا هم په تشو اوهامو او هوسونو پسې ولوېدل، او د شرعي په اصولو کې سره متفرق او په فروعو کې سره مختلف او جلا جلا (جدا جدا) شول، په پای کې ګوند او ګوند بازۍ د دوی مذهب او قوميت وران او ويجاړ او تباه کړ، او ګرد (ټول) سره د الله تعالی په عذاب بېل بېل ککړ شول.

**تنبيه:** له دې آيت څخه د هغو اختلافاتو او ډلې ډلې کېدلو مذموميت او تباهي معلومه شوه؛ چې د شريعت د صافو احکامو له خبرېدلو وروسته پيدا شي، د افسوس ځای دی چې د ننني مسلمانانو په منځ کې په سلهاوو ګوندونه (ډلې) د اسلامي شريعت له ښکاره وو صريحو، مسلّمو او ټينګو اصولو څخه جلا (جدا) شوي دي، او د دوی په منځ کې اختلافونه اچول شوي دي، او د دې اختلاف او انشقاق عاملين د همدې عذاب لاندې راغلي دي.

بيا هم د شکر ځای دی، چې د دې بې تميزۍ په طوفان کې د الله تعالی او د ده د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وعدې سره سم يو عظيم الشأن جماعت د پاک الله دا رسۍ ټينګه نيولې ده، او د «ما أنا عليه وأصحابي» په مسلک باندې قائم دي، (الحمد لله) او د قيامت تر ورځې به قائم وي.

پاتې شول هغه فرعي اختلافونه چې د لويو اصحابو رضي الله عنهم او د مجتهدينو ائمه وو په منځ کې شته، هغه له دې آيت سره هيڅ تعلق نه لري، د دې فرعي اختلافونو پر اسبابو باندې شاه ولي الله «رحمه الله» په خپلو تصانيفو کې کافي او شافي بحث کړی دی.

يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ۚ

په هغه ورځ چې سپين به شي (ځينې) مخونه (د مؤمنانو) او تور به شي (ځينې) مخونه (د کافرانو).

فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ

پس هر هغه کسان چې تور شوي دي مخونه د دوی (نو و به ويل شي دوی ته) آيا کافران شوي يئ تاسې وروسته له ايمان راوړلو ستاسې؟.

**تفسير:** د دې الفاظو اطلاق پر مرتدانو، منافقانو، کتابيانو، او عامو کافرانو يا پر ګردو مبتدعينو، فساقو، او فجارو باندې کېږي:

«مرتد» هغه ته ويل کيږي، چې وروسته له ايمان راوړلو څخه بيا کافر شي.

«منافق» هغه دی چې په ژبې سره اقرار کوي، خو په زړه کې ترې انکار لري، او کافر وي.

«کتابي»: پخپلو انبياوو او کتابونو باندې د ايمان لرلو مدعي وي، چې د دې مطلب داسې کيږي چې دوی هغه ګرد زيري چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په نسبت ورکړی شوي دي؛ ومني، او سم له هغو هداياتو سره ځمونږ پر

رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړي، مګر دوی په خپل انکار کې له ګردو څنې په مخ لاړل، ګواکې دوی وروسته له ایمان راوړلو پر خپل کتاب او نبي بیا کافریږي.

«مبتدع» هغه دی چې تش په خوله دعوی کوي چې مونږ د قرآن شریف او سنت تابعان یو، او پر نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې مو ایمان راوړی دی، مګر وروسته له هغه ډېر بې اصله او باطل شیان په دین کې شاملوي، یا د دین له ځینو ضروریاتو څنې انکار کوي، او له اصلي دین څخه د باندې وځي، همدا طریقه دوی هم تر یوه درجې پورې په ﴿أَكَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ﴾ سره مخاطبوي.

پاتې شول «فساق» چې د هغو ی عقیده صحیحه وي، که دغه خطاب هغوی ته وي، نو مطلب به یې داسې وي چې د ایمان له راوړلو څنې وروسته دوی خپل عمل د کافرانو په شان ولې وګرځاوه؟ ګواکې له کفر څخه به عملي کفر مراد وي.

او که د عامو کفارو په حق کې دا خطاب ومنل شي، نو حاصل یې دا دی: پاک الله ګرد د فطرت په دین باندې پیدا کړئ، نو تاسې هغه ایماني فطرت ولې ضائع کړی دی؟ او ولې کافران شوي یئ؟ نور د آیت له ښکاره سیاقه را معلومیږي چې دلته کفر فعلي کفر، یعني مذموم اختلاف او تفریق مراد دی.

فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ۝ وَأَمَّا الَّذِينَ ابْيَضَّتْ وُجُوهُهُمْ فَفِي رَحْمَةِ اللَّهِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

نو وڅکئ عذاب په سبب د دې چې وئ تاسې کافران کېدلئ. او هر هغه کسان چې سپین شوي دي مخونه د دوی نو وي به دوی په رحمت د الله (کې)، چې دوی به په هغه کې تل وي.

تفسیر: څکه چې جنت یواځې په عمل سره نه موندل کیږي، او سره له عمله د الله تعالی رحمت او فضل هم ورته پکار دی، او جنت همداسې یو ځای دی، چې هلته الله تعالی د هوسایی (قرارۍ) او آرامی او ښه ژوندون هر راز اسباب او سامان مهیأ (تیار) کړی دی.

تِلْكَ آيَاتُ اللَّهِ نَتْلُوهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۗ وَمَا اللَّهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعَالَمِينَ ۝ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝

دا (چې تېر شول) آیتونه د الله دي، مونږ یې لولو پر تا باندې (ای محمده !) په حقه سره، او نه دی الله چې اراده به کوي دظلم لپاره د عالمیانو (د عقاب په زیاتوالي یا د ثواب په لږوالي). او (خاص) الله لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، (سره له اسمانونو، ځمکو، ملکاً، خلقاً، او عبیداً) او (خاص) الله ته بېرته ګرځول کیږي ګرد کارونه (نو هر چا ته به د دوی له اعمالو سره سمه جزا ورکوي).

كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ

یئ تاسې (ای محمدي امته !) خیر (بهتر د هر هغه) امت چې ایستلي شوي دي لپاره د خلقو.

تفسیر: یعنې ای مسلمانانو ! الله تعالی تاسې له ګردو (ټولو) امتو څنې افضل او بهتر ګرځولي یئ ! د الله تعالی په ازلي علم کې له پخوا څخه هم دا مقرر او مقدر شوي وو، چې د هغه خبر ځینو پخوانیو انبیاوو علیهم السلام ته هم ورکړی

شوی وو، څرنګه چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم له ګردو (ټولو) انبیاوو علیهم السلام څخه افضل او بهتر دی، د ده امت هم له ګردو (ټولو) امتونو او اقوامو څخه ښه او بهتر دی، ځکه چې له ګردو (ټولو) څخه اشرف او اکرم رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوی په برخه شوی دی، او ډېر زیات پاتې کېدونکی او ښه کامل یې په نصیب دی.

**تنبیه:** د دې آل عمران سورت په ۸۱ آیت ۹ رکوع په ﴿وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ النَّبِيِّينَ﴾ الآیة ـ کې څمونږ د نبي کریم (علیه أفضل الصلاة والتسلیم) د کبری امامت او جامعیت بیان شوی وو، د آل عمران سورت په ۹۶ آیت ۱۰ رکوع کې په ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا﴾ الآیة ـ کې د ده امت د قبلې علویت او لوړه مرتبه وښوولې شوه، د آل عمران سورت په ۱۰۳ آیت ۱۱ رکوع کې په ﴿وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا﴾ الآیة ـ کې یې د ده د امت د کتاب او د شریعت مضبوطي ښکاره کړه، او د لته د دې آل عمران د سورت په ۱۱۰ آیت ۱۱ رکوع کې د دې مرحومه امت د فضیلت او عظمت اعلان کولی شي.

تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ

چې حکم کوئ تاسې (هر چاته) په معروف (نېکۍ) سره، او منع کوئ تاسې (هر څوک) له منکر (بدۍ) څخه.

**تفسیر:** په «منکر» کې خراب کارونه: لکه کفر، شرک، بدعتونه، قبیحه رسوم، فسق فجور، هر راز بد اخلاق، او غیر معقولې خبرې شاملې دي، له دې منکراتو څخه ممانعت هم په څو ډولونو وي، کله په ژبه، کله په لاسونو، کله په قلم، کله په توره او ټوپک لکه په «اکبر جهاد» سره، الغرض هر راز جهاد په دې کې داخل دی، دا صفت په داسې عمومیت او اهتمام سره چې په محمدي امت کې لیده کېږي، په پخوانیو امتونو کې د هغه مثال او نظیر نه موندل کېږي.

وَتُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

او ایمان لرئ په الله باندې (په دوام او ثبات سره).

**تفسیر:** په الله جل جلاله باندې په ایمان لرلو کې د ده پر توحید، د ده پر رسولانو، د ده پر کتابونو، د ده پر پرښتو او نورو مؤمن به شیانو باندې ایمان لرل هم داخل دي، رښتیا خو دا ده چې د خالص توحید شیوع (خورول) او اهتمام په دې اندازې سره چې «لله الحمد» په محمدي شریعت کې شته؛ په نورو امتونو کې نه وو، عمر رضي الله عنه فرمایلي دي: «هر سړی چې له تاسې څخه غواړي چې په دی امت (خیر الأمم) کې داخل شي، ښایي چې د الله تعالی شرط پوره کړي !»، یعني «امر بالمعروف، نهي عن المنکر» او «ایمان بالله» چې د هغه حاصل پخپله د ځان اصلاح او د نورو اصلاح ده، ځان ته دې غوره کړي، چې دا کار د صحابه وو «رضوان الله تعالی علیهم أجمعین» له شان څخه دي.

وَلَوْ آمَنَ أَهْلُ الْكِتَابِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ ۚ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿١١٠﴾

او که ایمان راوړی وای اهل کتابو (په قرآن او محمد نو) خامخا به وو (دا ایمان بهتر) خیر دوی لره، څخه له دوی څخه مؤمنان دي، او زیات د دوی فاسقان دي (نافرمانان متمردان په کفر).

لَنْ يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى ۖ وَإِنْ يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ ﴿١١١﴾

له سره به ضرر ونه رسوي تاسې ته (دغه فساق په هیڅ باب کې) مګر په (لږ) تکلیفولو (د ژبې)، او که جنګ وکړي دوی له تاسې سره نو وبه ګرځوي دوی تاسې ته شاوې (خپلې تېښتې ته)، بیا به له دوی سره مرسته ونه کړه شي، (بلکه له تاسې سره به د خالق مرستې وي).

تفسیر: لله الحمد دغه پخوا و یل حرف په حرف ثابت شول، او دلویو اصحابو رضوان الله تعالی علیهم أجمعین په زمانه کې دا ګردې پېښې پر کتابیانو باندې اجراء او تطبیق شوې، کتابیانو د اسلام او مسلمانانو د ناکامۍ او تباهۍ لپاره ډېر زیات تکلیفونه وګالل، او راز راز پلمې او دسیسې یې جوړې کړې، او زیات زور یې ولګاوه، مګر د مسلمانانو یوه وینښته ته یې هم څه نقص او ضرر ونه شو رسولی، هر چېرې چې مقابله وشوه، د «حمر مستنفره» په شان تښتېدل، او په هر ځای کې به د الله تعالی نصرت او امداد د همدغه خیر الأمم په نصیبب وو، او دښمنان به د بد حواسۍ او بېکسۍ په حال کې مقهور او مخذول کېدل، هر لوري ته به تښتېدل، یا به بندیان کېدل، یا به یې د تسلیم غاړه کېښوده، یا به جهنم ته رسېدل، فلله الحمد والمنه.

ضُرِبَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلذِّلَّةُ أَيۡنَ مَا ثُقِفُوٓاْ إِلَّا بِحَبۡلٖ مِّنَ ٱللَّهِ وَحَبۡلٖ مِّنَ ٱلنَّاسِ

مقرر کړی شو په دوی باندې ذلت (خواري په سبب د کفران د نعمت) په هر ځای کې چې وموندلی شي دوی (هیڅ وخت به عزت دوی ته نه وي) مګر (چې منګولې ولګوي) په رسۍ د الله او په رسۍ د خلقو (پناه د مسلمانانو).

تفسیر: دا آیات د کتابیانو له جملې څخه خاص په یهودانو پورې متعلق ښکاري، لکه چې د کلام له سیاقه او د قرآن کریم له نورو آیتونو څخې ظاهر دی، یعنې خورا (ډېر) دولتمندان یهودان هم پـه آزادۍ او خپلواکۍ سره د خپل ځان او مال حفاظت نشي کولی، ځکه چې دوی هیچېرې د کوم آزاد او مستقل حکومت مالکان نه دي، او په ګرده دنیا کې بې پته او بې عزته پراته دي، او یوازې ﴿وَحَبۡلٖ مِّنَ ٱلنَّاسِ﴾ په وسیله دوی لږ څه هوسایي (آرام) او ژوندون کوي، ځینو مفسرینو له ﴿إِلَّا بِحَبۡلٖ مِّنَ ٱللَّهِ﴾ او له ﴿وَحَبۡلٖ مِّنَ ٱلنَّاسِ﴾ څخې د الله تعالی ذمه او د مسلمانانو عهد مراد کړی دی، یعنې پر ته له دې چې له مسلمانانو سره عهد وکړي، او د الله تعالی په ذمه کې راشي.

وَبَآءُو بِغَضَبٖ مِّنَ ٱللَّهِ وَضُرِبَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلۡمَسۡكَنَةُۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ كَانُواْ يَكۡفُرُونَ بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَيَقۡتُلُونَ ٱلۡأَنۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقّٖۚ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَواْ وَّكَانُواْ يَعۡتَدُونَ ۝١١٢

او وګرځېدل (اخته شول) دوی په غضب (قهر) له (جانبه د) الله او مقرر کړل شو پردوی باندې مسکنت (محتاجي) دا (محتاجي او غضب) په سبب د دې دي؛ چې بېشکه دوی وو چې کافران کېدل په آیتونو د الله، او وژل به یې انبیاء په نا حقه سره (پخپل اعتقاد هم)، دا کفر او قتل په هغه سبب وو چې سرکښي کوله، او وو دوی چې له حدودو به تېرېدل (د عصیان په سبب).
تفسیر: همدغه مضمون د «البقرة» سورت په ۶۱ آیت ۷ رکوع کې تېر شوی دی، د هغه فائده دې دلته هم ولوستل شي !.

لَيۡسُواْ سَوَآءٗۗ مِّنۡ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ أُمَّةٞ قَآئِمَةٞ يَتۡلُونَ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ ءَانَآءَ ٱلَّيۡلِ وَهُمۡ يَسۡجُدُونَ ۝١١٣ يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَيَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ۝١١٤

نه دي دوی (ټول اهل کتاب سره) برابر، ځینې د اهل کتابو یوه فرقه ده، چې سمه ولاړه ده (په حق باندې) چې لولي دوی آیتونه د الله په ساعتونو د شپې، حال دا چې دوی سجدې کوي. ایمان راوړي په الله باندې او په ورځې آخرې، (د قیامت) باندې، او امر (حکم) کوي (خلقو ته) په معروف (نېکۍ) سره، او منعه کوي (خلق) له منکر (بدۍ) څخې، او تلوار کوي په ښو کارونو کې (تاخیر نه کوي)، او دغه کسان له صالحانو څخې دي.

تفسیر: د دې ګردو (ټولو) کتابیانو حال یو شان نه دی، د دومره بدانو په منځ کې څه ښه کسان هم شته، او د دې مسخه شویو اشقیاوو په منځ کې ځینې سعید ارواح هم موجود دي، چې دوی ته (حق سبحانه وتعالی) د حق منلو توفیق ورکړی دی، او د اسلام په غیږ کې ننوتلي دي، لکه عبد الله بن سلام او د هغه ملګري (رضي الله تعالی عنهم).

وَمَا يَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوهُ ؕ

او هر څه چې کوي دوی له خیره (ښه) پس له سره به ضایع نه کړی شي، د دوی (ثواب د) هغه کار.

تفسیر: بلکه دوه مثله اجر به مومي، لکه چې د «القصص» په ۵۴ آیت ۶ رکوع کې داسې یو آیت لولو: ﴿أُولَٰئِكَ يُؤْتَوْنَ أَجْرَهُمْ مَرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوا﴾ او په صحیح حدیث کې نبي کریم «علیه الصلاة والتسلیم» د هغه تشریح فرمایلې ده.

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ۝١١٥

او الله ښه عالم دی پر (احوالو) د پرهېزګارانو (هم).

تفسیر: د همدې له امله چېرې چې د یهودانو د خرابیو ذکر راځي، حق سبحانه وتعالی دا پرهېزګاران ترې مستثنی کوي، او سم د دوی له تقوی او پرهېزګارۍ سره په دنیا او آخرت کې له هغوی سره بېخي ممتازه معامله کوي.

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ أَمْوَالُهُمْ وَلَآ أَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْئًا ؕ وَأُولٰٓئِكَ أَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ۝١١٦ مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ أَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا أَنْفُسَهُمْ فَأَهْلَكَتْهُ ؕ

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي له سره به دفعه نه کړي له دوی ځنې مالونه د دوی، او نه اولادونه د دوی له (عذابه) د الله هیڅ شی !، او دغه کسان صاحبان د اور (د دوزخ دي)، دوی به په هغه (اور) کې تل وي (بې انتهاء، بلا انقطاع)، مثال د هغه مال چې صرفوي (یې کافران د الله په لاره کې) په دې ژوندانه د دنیا (لږ خسیس) کې؛ په شان د مثال د هغه باد دی، چې وي په دې باد کې ډېره یخني (یا اور) چې ورسېږي (دا باد) کښت (فصل) د یوه قوم ته چې ظلم یې کړی دی پر ځانونو خپلو، پس هلاک کړي دغه کښت (فصل).

تفسیر: د صالحانو او د متقیانو په مقابل کې د لته د کافرانو د حال او د انجام ذکر فرمایي: کافران هر څومره چې مال او قوت په دنیا کې ولګوي، اګر که دوی یې پخپل زعم لوی ثواب او ښه خیرات وګڼي، په آخرت کې یې هیڅ قدر او پوښتنه نه کېږي.

پر ته له ایمان د هر عمل مثال داسې وګڼئ، لکه چې کوم شریر یا ظالم فصل وکري، یا په باغ کې نیالګي کېږدي، او د هغه له څو ورځو زرغونتیا او ښکلي ننداري ځنې خوښ شي، او راز راز هیلي او امیدونه د هغو په نسبت پخپل زړه کې وګرځوي، چې ناڅاپه د هغه دشرارت او د بدبختی په اثر سخته سیلۍ ولګیږي، او پر هغو شینکو باندې دومره واوره او ږلۍ ولوېږي، چې یو په یو هغه تک شین فصل او باغ خراب کړي، او ویې سوځوي، او دې په پای (آخر) کې د دې تباهۍ په نسبت خپلې ګوتې وچیچي، او خاورې په سر باد کړي، نه یې امیدونه په ځای شي، او نه د اړې او احتیاج په وخت کې د هغه له پیداواره منتفع شي.

او کله چې دا تباهي دظلم او د شرارت سزا وه، نو ځکه پر دغه مصیبت باندې څه اخروي اجر هم لکه چې مؤمنانو ته په داسې مواردو کې ور رسیږي؛ په لاس نه ورځي، کټ مټ (هو بهو) همدا د هغو کفارو احوال دي، چې په شرک او کفر باندې ټینګ ولاړ دي، او پخپلو خیالاتو او چرتونو (وهمونو) ډېر خیر او خیرات ورکوي.

پاتې شول هغه کمبختان چې د هغوی زور، قوت، مال او شته د حق او د اهل حق په دښمنۍ، یا په فسق او فجور کې لګیږي؛ نو د دوی د حال پوښتنې نه دي پکار، ولې چې دوی نه یواځې خپل مال خوشې چټي (فضول) صرفوي، بلکه په دې مال صرفولو سره ځان ته لا نور زیان او وبال هم اړوي، دې ګردو ته ښايي چې په یاد یې ولري، «مال وي، که اولاد، هرڅه چې وي، د الله تعالی د عذاب مخه نشي اړولی، او نه د متقیانو په مقابل کې دوی پخپلو هیلو باندې بری مومي.

تنبیه: «ریح» مفرد لفظ په قرآنکریم کې عموما د عذاب په مورد کې مستعمل شوی دی، لکه ﴿رِيحٌ فِيهَا عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ او ﴿وَلَئِنْ أَرْسَلْنَا رِيحًا﴾ او ﴿إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا﴾ الآیة ـ او د «رحمت» په موقع کې د جمعي لفظ «ریاح» راغلی دی ﴿يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ﴾ او ﴿وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ﴾ الآیة ـ او ﴿يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا﴾ الآیة ـ کذا ذکره أبو حیان.

وَمَا ظَلَمَهُمُ اللَّهُ وَلَٰكِنْ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿۱۱۷﴾

او نه دې ظلم کړی پر دوی باندې الله، ولیکن پر ځانو خپلو ظلم کوي دوی (په کفر سره چې د حسناتو د ضیاع موجب دی).

تفسیر: داسې دې ونه ګڼل شي، چې «هر کله د کافرانو هیڅ یوه نیکي نه منله کیږي، نو پر دوی باندې معاذ الله د الله تعالی له جانبه ظلم او تېری شوی دی»، داسې نه ده ! ځکه چې دوی دا ظلم پخپلو ځانونو باندې پخپل لاس کړی دی، که دوی کفر او شرک خپلو ځانونو ته نه غوره کولی، نو دغه بده ورځ به ورته نه پېښېده.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۱۱۸﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو !) مه نیسئ تاسې دوستان د راز (له هیڅ فرقې نه چې وي) غیر له تاسې (مؤمنانو)، هیڅ کمی نه کوي دوی له تاسو سره د فساد (او ضرر رسولو)، دوست ګڼي دوی ضرر ستاسې، په تحقیق ښکاره شوې دی بغض او دښمني له خولو د دوی نه، او هغه بغض چې پټوي یې سینې (زړونه) د دوی؛ ډېر لوی دی (له هغه چې په خوله یې وایي)، په تحقیق بیان کړي دي مونږ تاسې ته علامې (د نفاق د دوی)، که یئ تاسې عقل چلوئ پکې (پوهیږئ).

تفسیر: حق تعالی دلته په صاف او ښکاره ډول سره تنبیه راکړه، چې مسلمانان دې د خپل حقیقي مسلمان ورور څنې پرته بل چا ته د خپل د زړه خبره او پټه مرکه (راز) نه ورښیي، ځکه که یهودي وي یا نصراني، منافق وي که مشرک؛ له دوی څنې هره یوه ډله چې وي ستاسې حقیقي خیر غوښتونکي نه دي، بلکه دا خلق تل په دې کوښښ کې لګیا دي، چې تاسې تېر باسي، او په هر فریب سره چې وشي، څه زیان در ورسوي، او په دیني او دنیوي خرابیو کې تاسې اخته کړي، د دوی خوښه همدا ده چې تاسې په تکلیف کې اوسئ، او په یوه نه یوه تدبیر تاسې ته کوم دیني یا دنیوي نقصان دررسیږي.

هغه دښمني او بغض چې د دوی په زړونو کې دی، هغه خو ډېر زیات دی، لیکن ډېر ځلې داسې هم کیږي، چې دوی د عداوت او غیظ د جذباتو په مقابل کې مغلوبیږي، د همدې حسد او دښمنۍ له امله د دوی ژبې د دوی په واک (قبضه) او اختیار کې نه دي.

نو د عقلمند سړي دا کار نه دی، چې هسي خبیث باطن دښمنان خپل رازداران وګرځوي، حق تعالی د دوست او دښمن علامې، او د موالاتو او نورو احکامو په ښکاره ډول سره بیان فرمایلي دي، په هر هغه چا کې چې عقل وي، له هغه څخه به کار اخلي، (د کفارو د موالاتو په نسبت څه تفصیل پخوا له دې نه په همدې سورت کې تېر شوی دی، او څه نور په «المائده» او نورو کې راځي.

هَآأَنتُمْ أُولَآءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتَٰبِ كُلِّهِۦ

واورئ خبردار شئ ! تاسې هغه کسان يئ چې دوستي کوئ له دوی سره، او نه کوي دوستي دوی له تاسې سره، او تاسې ايمان لرونکي يئ پر ټولو کتابونو.

تفسیر: یعنې دا څومره بې موقعه خبره ده چې تاسې د هغوی په دوستی باندې نازېږئ ! او هغوی ستاسې دوستان نه دي، بلکه ستاسې بېخ ایستونکي دښمنان دي، او عجیبه لا دا ده چې تاسې آسماني کتابونه اعم له دې چې هغه د هر قوم وي، او په هره زمانه کې معمول وي، پر هر نبي الله باندې چې نازل شوي وي؛ ګرد منئ، (پر هغو باندې چې حق تعالی یې نومونه راښودلي دي بالتفصیل، او پر هغوی باندې چې نومونه یې نه دي راښودلي بالاجمال ایمان لرئ)، په خلاف د دې دا خلق ستاسې کتاب اونبي علیه السلام نه مني، بلکه دوی پر خپلو کتابونو او انبیاوو باندې هم صحیح ایمان نه لري، په دې لحاظ سره ښه خو به داسې وو چې هغوی به له تاسې سره مینه او محبت کولی، او تاسې به له دوی څخه لرې ګرځېدئ ! او نفرت او بېزاري به مو ښکاروله، مګر دلته خو معامله سرچپه او بالعکس ده.

وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا

او کله چې يو ځای شي دوی له تاسې سره نو وايي دوی: ايمان مو راوړی دی.

تفسیر: منافقینو خو به تل هم داسې ویل: «عامو یهودانو او نصرانیانو هم پخپلو خبرو او اترو او مباحثو کې آمنا ـ مونږ مؤمنان یو !» ویل، له دې وینا څخه د هغو مقصد دا وو چې مونږ په خپلو کتابونو باندې ایمان لرو، او هغه منو !.

وَإِذَا خَلَوْا۟ عَضُّوا۟ عَلَيْكُمُ ٱلْأَنَامِلَ مِنَ ٱلْغَيْظِ

او کله چې يواځې شي دوی نو چيچي دوی په تاسې باندې سرونه د ګوتو له (ډېره) قهره.

قُلْ مُوتُوا۟ بِغَيْظِكُمْ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) مړه شئ په قهر (او بغض) خپل سره.

تفسیر: یعنې الله تعالی اسلام او مسلمانانو ته لا زیات ترقیات او فتوحات ور په برخه کوي، نو تاسې پخپل غیظ، غضب، او غصه کې ومرئ ! که له ډېرو لغتو وهلو څخه مو سا وخېژي، خو بیا به هم ستاسې دا هیلي او آرزوګانې نه پوره کېږي، او الله تعالی هرو مرو اسلام غالب او مسلمانان بریالي کوي.

إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ﴿۱۱۹﴾

ببشکه چې الله عالم دی په هغو (خبرو هم) چې په سينو (زړونو) کې دي (نو دوی ته پرې جزاء ور کوي).

إِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا بِهَا

که ورسیږي تاسې ته کومه ښېګڼه (لکه فتح یا غنیمت) نو خپه کوي دوی، او که ورسیږي تاسې ته کومه بدي (خپګان، لکه قتل یا هزیمت) نو خوشالیږي دوی په سبب د هغه.

تفسیر: که ستاسې لږ څه ګټه او فائده د دوی تر سترګو شي، مثلاً ستاسې اتحاد یو جهتي، پر دښمنانو باندې غلبه، او نور وويني، نو د رخې (کينې) او حسد په اور کې نيني نيني کيږي، او که چېرې پر تاسې کوم مصيبت يا خپګان راشي، نو دوی له ډېرې خوښۍ او خوشالۍ پخپلو کاليو (جامو) کې نه ځاييږي.

وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا ۗ إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿١٢٠﴾

او که صبر وکړئ تاسې (پر اضرارو د دوی) او ځان وساتئ تاسې (له دوستۍ د دوی) نو ضرر به ونه رسوي تاسې ته مکر، فريب د دوی هيڅ شی، بېشکه چې الله په هغو کارونو چې دوی (يې) کوي (هم) ښه احاطه کوونکی (او هر شې ورته معلوم) دی.

تفسیر: ممکن وو چې چا ته دا خيال پيدا کېده، چې که مونږ له دوی سره دوستانه تعلقات ونه لرو، نو دوی ته به لا زيات غيظ او غضب ورځي، او څمونږ په خلاف به تدبيرونه کوي، او لا زيات زيان به راورسوي، ددې ځواب يې داسې ورکړ چې: که تاسې په صبر او استقلال، تقوی او طهارت باندې ټينګ ولاړ اوسئ، نو د هغوی به هيڅ ډول مکر او فريب پر تاسې نه چلېږي.

وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٢١﴾ إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنْكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٢٢﴾ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللَّهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ ۖ فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿١٢٣﴾

او (ياد کړه ای محمده !) چې راووتې ته په اول د ورځې کې له کوره خپله چې تيارول دې مؤمنانو ته (په احد کې) ځايونه لپاره د جنګ، او الله ښه اورېدونکی دی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (پر ګردو احوالو). کله چې قصد وکړ دوو طائفو له تاسې د دې خبرې چې بې زړه شي دوی (له جنګه) حال دا چې الله ولي (مددګار) د دوی وو، او خاص پر الله دې نو توکل وکړي مؤمنان. او خامخا په تحقيق مرسته (مدد) کړی وو له تاسې سره الله په (جنګ ) د بدر کې، حال دا چې تاسې کمزوري وئ، نو ووېرېږئ له الله نه، لپاره د دې چې شکر وکړئ تاسې (د نعمتونو او احسانونو د ده).

تفسیر: په دې آيت کې د (احد) د غزا واقعه ياده شوې ده، دا واقعه داسې وه، چې د هجرت په (۲) کال د رمضان المبارک په مياشت د (بدر) په مقام کې د مسلمانانو او قريشو د فوځونو په منځ کې لوی تصادم واقع شو، چې په هغه کې د مکې معظمې له کفارو (۷۰) نوميالي سړي مقتول او (۷۰) تنه بنديان شول، له دې تباه کوونکې او سپکوونکې ماتې څخه د قريشو د انتقام لمبې پورته شوې، او د هجرت په (۳) کال له قريشو سره نورې قبيلې هم پر (مدينې منورې) باندې د تعرض په قصد ووتلې، تر دې چې له دوی سره ښځې هم د جنګ په نيت او د دې لپاره چې د ضرورت په وخت کې نارينه وو ته غيرت ورکړي، او د دوی د ماتې مخه ونيسي؛ روانې شولې.

کله چې دغه درې زريزه لښکر په وسلو او تجهيزاتو (تيارو) سره له مدينې منورې څخه (۳) يا (۴) ميله لرې (د احد) د غره سره نږدې د چهارشنبې په ورځ د شوال (۱۲) د هجرت په درېم کال واړول، نو رسول اکرم صلی الله عليه وسلم

له خپلو اصحابوسره جرګه او مشوره وکړه، د رسول الله مبارک رایه داسې وه، چې پخپله په مدینې منورې کې اسلامي مجاهدین پاتې شي، ځکه چې په هم هغه ځای کې هم د مکې معظمې له کفارو سره په ډېر آسانی سره غزا کېدی شي،او د دې فکر تایید د دوی له یوه خوب څخه هم شوی وو.

دا لمړی ځل وو چې له رئیس المنافقین (عبد الله بن أُبيّ) څخني هم رایه واخیسته شوه، چې د ده رایه هم د رسول الله مبارک له رایې سره موافقه وه، مګر ځینې هغه پر جوش مسلمانان چې د بدر په غزا کې نه وو شامل شوي، او د غزا او شهادت په درجې موندلو پسې مضطرب وو، په دې باندې ټینګ شول چې مونږ ته ښایي چې له ښاره د باندې ووځو، او هلته له کفارو سره مقابله وکړو، تر څو دښمن د ضعف او د وېرې ګمان پر مونږ باندې ونه کړي، د آراوو اکثریت په وتلو باندې غوټه شو.

په همدې شور ماشور کې رسول الله صلی الله علیه وسلم کورته ولاړ او ځغره یې واغوسته، او خپله وسله یې واخیسته، او د غزا په نیت د باندې ووت، د پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم په غیاب کې ځینو کسانو ته هسې یو خیال پیدا شو چې «مونږ ولې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خیاله مخالف دوی ته عرض وکړ، چې د غزا لپاره د باندې ووځي !» نو ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له کور څخني د راوتلو په وخت کې د دوی په لوړ حضور کې عرض وشو: «یا رسول الله ! کله چې ستاسې پاکه اراده پر دې باندې ده چې هم دلته مدافعه وکړو، نو راځئ چې هم دلته سنګر ونیسو»، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «یو نبي ته دا خبره مناسبه نه ده، کله چې دې ځغره واغوندي، او وسله په لاس واخلي، او غزا ته خپله ملا وتړي، بیا بې له قتاله وسله له ځانه لرې کړي».

کله چې دوی له مدینې منورې څخني د باندې تشریف یووړ، نږدې زر تنه مجاهدین له دوی سره وو، مګر عبد الله بن أُبَيّ نږدې سره له (۳۰۰) سړیو (چې ځینې مسلمانان هم په کې وو) له لارې بېرته وګرځېدل، او ویل به یې: «کله چې ده زما په خبره باندې غوږ کېنښنبود، او زما په مشوره یې عمل ونه کړ، نو مونږ هم دې ته اړ نه یو چې وجنګېږو، او خامخا خپل ځانونه مړه کړو»، ځینو مشرانو (ابن أُبَيّ) وپوهاوه چې «راځه ! چې غزا ته ولاړ شو ! چېرې ځې» خو (ابن أبي) ونه منله، او ټول سره ستانه (واپس) شول.

په پای کې رسول الله مبارک سره له (۷۰۰) مجاهدینو د جنګ ډګر (میدان) ته ورسېدل، او رسول الله مبارک بالذات د لښکرو صفونه وتړل، او هر یو ټولی یې په مناسب ځای کې وټاکه (مقرر کړه)، او هغوی ته یې خپل وظیفې وروښودلې، او امر یې وفرمایه: «تر څو چې زه د جنګ حکم در نه کړم ؛ تاسې مه جنګېږئ !، او په خپلو ځایونو کې منتظر اوسئ !».

په دې منځ کې د عبد الله بن أُبَی د جلا والي او د تحریک په اثر د دوو قبیلو بنو حارثه او بنو سلمه په زړونو کې څه کمزوري ورپیدا شوه، او د مسلمانانو د لږ تعداد له کبله یې زړونه سره ورېږدېدل، او داسې خیال ورپیدا شو چې د جنګ له ډګره ځان بېرته وکاږي، مګر «حق جل وعلی شأنه » د دوی لاس ونیوه، او له دوی سره یې مرسته وکړه، او زړونه یې ټینګ کړل، او دا یې ور په زړه کړ، چې د مسلمانانو اعتماد او ډاډینه ښایي یوازې په الله تعالی باندې وي، او ښایي تل تر تله د الله تعالی په اعانت او نصرت باندې متوکلان وي، تعداد، سامان، لوازم او تجهیزات او نور دومره اهمیت نه لري، کله چې الله تعالی څوک غواړي چې مظفر او منصور وګرځوي؛ نو له ګرد ساز او سامان څخني یې مستغني او بې پروا کوي، او غیبي تایید «فتح مبین» ور په برخه کوي، لکه چې د «بدر» په غزا کې داسې وشو.

نو مسلمانانو ته ښایي چې تل له الله تعالی څخني وویرېږي، څو د الله تعالی له جانبه دوی ته لا انعام او احسان او د ډېر شکر کولو موقع په لاس ورشي، د «بدر» دغزا پوره تفصیل د «الأنفال» په سورت کې راځي، د هغه په فوائدو کې دې وکتل شي.

تنبیه: له دوو فرقو څخنې مراد «بنو حارثه» او «بنو سلمه» دي، اګر که په دې آيت کې دوی ته نرۍ شانته «اخطار» ورکړی شوی دی، مګر ددې قبیلې ځینو مشرانو به فرمایل چې: «د دې آيت په نه نازلېدو مونږ نه وو خوښ، بلکه پر نزول یې خوښ یو» ځکه چې ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ زېرۍ د ده له وېرې څخنې لوی دی».

إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُنْزَلِينَ ﴿۱۲۴﴾

(یاد کړه ای محمده !) کله چې ویل تا مؤمنانو ته چې: آیا کافي (بس) به نه شي ستاسې دا چې مرسته (مدد) وکړي له تاسې سره رب ستاسې په درې زرو له پرښتو چې رالېږلی شوي وي (له آسمانه).

تفسیر: یعنې چې له آسمانه خاص د همدې کار لپاره نازل کړی شوي وي، د اکثرو علماوو په نزد دا راجح دی، چې دا واقعه د «بدر» د غزا ده، کله چې مسلمانانو ته د کفارو د جمعیت او کثرت او اسلحې او تجهیزاتو له لیدلو څخنې اندېښنې او تشویش پیدا شو، نو رسول الله مبارک د دوی د تسلی لپاره داسې وفرمایل، او داسې وشوه، لکه چې د پرښتو مرسته (مدد) له اسمانه ورسېده، د «الأنفال» په سورت کې ددې مفصل بیان راځي.

بَلَىٰ إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُمْ مِنْ فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ ﴿۱۲۵﴾

هو ! (درې زره بس کیږي) ! که تاسې صبر وکړئ او وویرېږئ (له الله) او راشي مشرکان پر تاسې؛ په دغه ساعت (بې له ټاله یو ناڅاپه) مرسته (مدد) به وکړي له تاسې سره رب ستاسې په پنځو زرو سره له پرښتو چې علامې لرونکې به وي.

تفسیر: څرنګه چې په «بدر» کې د کفارو شمېر یو زر تنه وو، لومړی یې د هغه په تناسب د یو زر پرښتو وعده وفرمایله، لکه چې د «الأنفال» په سورت کې راځي، بیا یې د مسلمانانو د وېرې د لرې کولو لپاره د دوی شمېر درې چنده وفرمایه، ځکه چې د کفارو شمېر د مسلمانانو د شمیر په نسبت درې چنده وو.

وروسته له دې نه د (شَعبي) له روایت سره سم کله چې مسلمانانو ته دا خبره ورسېده چې (کرز بن جابر) د لوی کومک سره د مشرکانو په مرسته راځي، نو یو نوې اضطراب پیدا شو، په دې وخت کې الله تعالی د زیات تسکین لپاره وعده وفرمایله : که له صبره او تقوی څخه کار واخلئ، نو مونږ به پنځه زره پرښتې ستاسې د مرستې لپاره درولیږو، که د مشرکانو مرسته ناڅاپه وررورسېده، نو بیا هم څه اندېښنه مه کوئ ! ځکه چې الله تعالی سم د لاسه په عین وخت کې بیا تاسې سره مرسته کوي.

ښایي چې د پنځو زرو شمېر ددې له امله ویلی شوي وي، چې لښکر په پنځو برخو ویشلی کیږي، نو هرې برخې ته یو یو زر مرسته ورکوله کېده، څرنګه چې د (کرز بن جابر) مرسته ونه رسېده، نو ځکه ځینې وایي چې: د پنځو زرو وعده هم پوره نه کړي شوه، ولې چې هغه وعده په ﴿وَيَأْتُوكُمْ مِنْ فَوْرِهِمْ هَٰذَا﴾ پورې معلقه وه.

د ځینو قول داسې دی چې پنځه زره پرښتې نازلې شوې. والله أعلم.

وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُمْ بِهِ ۗ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿۱۲۶﴾

او نه ده ګرځولې الله دا مرسته مګر لپاره د خوشالتیا ستاسې، او لپاره د دې چې تسکین ومومي زړونه ستاسې په دې سره، او نه ده مرسته مګر له (جانبه د) الله چې ښه غالب قوي دی (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: یعني دا ګرد غیبي سامان په فوق العاده ډول سره د ظاهري اسبابو په صورت یواځې دې لپاره مهیأ کړی شوی دی، چې ستاسې له زړونو څخه وېره او اضطراب لرې شي، سکون او اطمینان ستاسې په برخه شي، که نه د الله تعالی مرسته په هسې شیانو باندې محدود او مقصور نه دی، او نه له اسبابو او سامان سره څه اړه او تعلق لري، که الله تعالی اراده وفرمایي، نو یواځې پخپل قوي قدرت سره بې د پرښتو له اشتراکه هم تاسې بریالي کوي، یا بې ستاسې له جهاده او ربړ ګاللو (تکلیف تېرولو) څخه کافران نا مراد او زیانمن کوي، یا له یوې پرښتې څخه همدا کار اخلې، چې اوس یې له (۵۰۰۰) څخه اخلې.

لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا خَائِبِينَ ﴿١٢٧﴾

(الله کومک درکړ) څکه چې هلاک کړي ځینې له هغو کسانو چې کافران شوي دي، یا یې ذلیل (خواروزار) کړي، پس بېرته ولاړ شي (په ماتې سره) محروم.

تفسیر: یعني د پرښتو له لېږلو څخه ستاسې امداد مقصود وو، چې ستاسې زړونه ډاډه او کلک شي! او د الله تعالی له جانبه پوره بشارت او اطمینان ومومئ! او په سکون سره په ډېره بهادرۍ د دښمن مقابله وکړئ! چې له هغه څخه دا غرض وو چې دا د کفارو زور مات شي، او د دوی مټونه پرې شي او څه نومیالي (نامور) ووژلی شي، او څه ترې په ذلت سره بندیان شي.

لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ ﴿١٢٨﴾

نشته تا لره له امره هیڅ شی (بلکه الله اختیار لري دهر شي) یا به رجوع وکړي (الله په قبلولو د توبې سره) په دوی باندې، یا به عذابوي (الله) دوی، پس بېشکه دوی ظالمان دي.

تفسیر: د (احد) په غزا کې (۷۰) تنه لوی اصحابان شهیدان شوي وو، چې په هغوی کې څمونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم تره سید الشهداء حمزه رضي الله تعالی عنه هم وو، مشرکانو په ډېره وحشیانه ډول سره شهدا مثله کړي هم وو، یعنې پوزې، غوږونه، او نور اعضاء یې ترې پرې او ګېډې یې ورڅیرې کړې وې، تر دې چې د حمزه رضي الله تعالی عنه زړه او ځیګر هم هندې (د أبو سفیان ښځې) وایستل، او ویې ژوول، ددې غزا مفصله واقعه به وروسته راشي، لنډه یې دا چې نبي کریم «علیه افضل الصلاة والتسلیم» ته په دغې غزا کې د سترګو د بد نظر ضرر ورسېد، او له مخنیو څلور غاښونو څخه لاندې نبی غاښ په شهادت ورسېد، د (خول) کړۍ یې ماتې شوې، او دده مبارک په مخ کې ننوتې، او د ده مبارک تندی زخمي شو، او دده مبارک وجود په وینو تک سور شو، په همدې وخت کې د ده مبارک پښه هم وښوییده، او پر څمکه ولوېد، کافرانو دا مشهوره کړه (ان محمدا قد قتل)، «بېشکه محمد ووژل شو»، د دې خبرې له اورېدلو څخه ګرد مسلمانان وارخطا شول، په دغه وخت کې د ده له مبارکې خولې څخه دا جمله ووته: «هغه قوم به څنګه فلاح ومومي چې د خپل هغه رسول مخ یې په وینو سور (ژوبل) کړ، چې دوی د الله جل جلاله په لوري بولي؟»، هو! دمشرکانو د وحشیانه شدائدو او ظلمونو دلیدلو په اثر دوی متأثر شول، او د کفارو څو نومیالیو (نومورو) متجاوزینو ته یې د ښېرا کولو اراده وفرمایله.

څه موده وروسته الله جل جلاله دوی ګرد سره په خپلو کړو پښېمانه کړل، او د اسلام په سر تېرو لښکرو کې شامل شول، الغرض په ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ﴾ کې یې محمد صلی الله علیه وسلم ته تنبیه وفرمایله، چې بنده لره اختیار نشته او نه د هغه علم محیط دی، د هر شي اراده چې الله تعالی وفرمایي هم هغه کوي، که څه هم کافران ستاسې دښمنان دي، او پر تاسې ظلم کوي، خو که الله جل جلاله اراده وفرمایي هغوی ته هدایت کوي، او که یې اراده وشي عذاب ورکوي، نو ته له خپله ځانه هغوی ته ښېرا مه کوه!.

په ځینو روایتونو کې د دې آیتونو په شان نزول کې بل رنګ معلومیږي چې دلته د هغوی د تفصیل د لیکلو ځای نشته، په «فتح الباري» کې څو ځایه پر هغه باندې پوره بحث شوی دی، فلیراجع.

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَنْ يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَشَآءُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲۹﴾

او (خاص) الله لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي او هر څه چې په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې ملکا خلقًا او عبیداً)، بخښنه کوي الله هر هغه چاته چې اراده وفرمايي د بخښني یې، او په عذابوي الله هر چا ته چې اراده وفرمايي د عذاب یې، او الله ښه بخښوونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبٰوٓا

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) مه خورئ سود !

أَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ۖ

په دې حال چې دوه چنده پر دوه چنده وي.

تفسیر: د دې مطلب داسې نه دی چې لږ سود اخلئ ! خو دوه چنده او درې چنده یې مه اخلئ !؛ خبره داده چې د جاهلیت په زمانه کې به خلقو سود او سوایي اخیستل، لکه چې نن ورځې په عامو او اکثرو بینکونو کې رواج دی، همدا صورت یې په ﴿أَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً﴾ سره تعبیر وفرمایه، یعنې اول خو سود مطلقا حرام او قبیح دی، او بیا دا صورت خو یې ډېر زیات شنیع او بد دی، لکه چې څوک ووایي: «خانه ! په مسجد کې ښکنځلې مه کوه !» نو ددې خبرې مطلب داسې نه کیږي، چې له مسجد د باندې د ښکنځلو اجازه شته، بلکه داسې الفاظ د زیات تقبیح او تشنیع په موقع کې ویل کیږي.

وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۱۳۰﴾

او وویرېږئ له الله څخه ښايي چې په مراد به ورسیږئ (خلاص به شئ تاسې د الله له قهره).

تفسیر: یعنې په سود خوړلو کې هیڅ نیکي نشته، بلکه ښېګڼه (ښه والی) په دې کې ده، چې له الله جل جلاله څخه وویرېږئ ! او د سود خوراک پرېږدئ.

وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيٓ أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِينَ ﴿۱۳۱﴾

او وویرېږئ ! له اوره چې تیار کړی شوی دی لپاره د کافرانو.

تفسیر: یعنې سود خور دوزخ ته ځي، چې هغه اصلا د کفارو لپاره جوړ کړی شوی دی.

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿۱۳۲﴾

او حکم ومنئ د الله او (حکم ومنئ) د رسول (د الله)، لپاره د دې چې پر تاسې رحم وکړی شي.

تفسیر: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم منل هم په حقیقت کې د الله جل جلاله حکم منل دي، څکه چې همده حکم راکړی دی، چې مونږ د ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم هم ومنو، او د هغه پوره اطاعت وکړو،

هغه احمقان چې د اطاعت او عبادت په منځ کې څه فرق نه کوي، دوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت په شرک سره تعبیروي، څرنګه چې د أحد په غزا کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له حکم څخه مخالفت شوی وو، لکه چې وروسته راځي، نو ځکه د راتلونکې زمانې لپاره تنبیه ورکوله کیږي، چې د الله تعالی د رحمت او د فلاح او بري هیله هلته کېدلی شي، چې د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خبرو باندې عمل او ټګ وکړی شي.

وَسَارِعُوٓا۟ إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ

او تلوار وکړئ په طرف د (هغو اعمالو چې سبب د) مغفرت د رب ستاسې او (سبب د دخول د) جنت (دی).

**تفسیر:** یعنې دهغو اعمالو او اخلاقو په لوري منډې ووهئ! چې د الله تعالی له وعدې سره سم د هغه په کولو سره د بخشش وړ (لایق) او د جنت مستحق ګرځئ.

عَرْضُهَا ٱلسَّمَٰوَٰتُ وَٱلْأَرْضُ

چې پلنوالی د هغه جنت (لکه پلنوالی د) آسمانونو او ځمکې دی.

**تفسیر:** څرنګه چې د بنیادمانو په مغزو کې د ځمکو او آسمانونو له وسعت څخه زیات بل کوم وسعت نشي راتلی، نو ځکه یې د پوهولو لپاره د جنت عرض له هغه سره تشبیه کړ، ګواکې دا یې راوښودل چې د جنت عرض له دې څخه زیات وګڼئ، کله چې د جنت عرض (سور) دومره وي، نو الله تعالی ته ښه معلوم دی، چې د هغه طول (اوږدوالی) به څومره وي؟

أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ﴿١٣٣﴾ ٱلَّذِينَ يُنفِقُونَ فِى ٱلسَّرَّآءِ وَٱلضَّرَّآءِ

تیار کړی شوی دی دغه (جنت) لپاره د پرهېزګارانو. هغه کسان چې نفقه ورکوي (مال لګوي د الله په نامه) په خوښۍ (یا ارزانۍ یا شتمنۍ کې) او تکلیف (یا قیمتۍ یا تنګسه کې).

**تفسیر:** یعنې نه په عیش او خوښۍ کې الله تعالی هیروي، او نه دتنګسې اوتکلیف په وخت کې د الله تعالی په نامه باندې له ورکړې څخه ځان ساتي، په هره موقع او په هر حال کې سم له خپله توانه د خیراتو او صدقاتو لپاره تیار وي، او د سود خورانو په شان بخیلان او خزانه داران نه دي، ګواکې سره له بدني جهاده مالي جهاد هم کوي.

وَٱلْكَٰظِمِينَ ٱلْغَيْظَ وَٱلْعَافِينَ عَنِ ٱلنَّاسِ ۗ وَٱللَّهُ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١٣٤﴾

او چې زغمونکي د قهر دي (سره له قدرته) او عفوه کوونکي دي له خلقو (چې پرې وکړي زیاتی او ظلم) او الله خوښوي نیکي کوونکي.

**تفسیر:** د قهر او غوصې زغمل لوی کمال دی، برسېره پر هغه دا ډېر ښه او لوی کار دی، چې د خلقو تجاوزات او غلطیانې هم بیخي معافوي، او نه یې یواځې معافوي، بلکه له هغوی سره احسان، او نیکي هم کوي، غالبا پخوا له دې نه د کومو خلقو په نسبت چې د نه ښېرا کولو امر، ارشاد، او اشاره ورته شوې وه، دلته د هغوی په نسبت د غصې او د قهر زغمل، او دعفوې او د تېرېدلو څخه د کار اخیستلو ترغیب ورکړی شوی دی.

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

او هغه كسان كله چې وكړي دوى كومه لويه ګناه يا ظلم وكړي دوى پر ځانونو خپلو باندې (په كولو د وړو ګناهونو).

تفسير: يعني بيخي په ښكاره ډول سره كه څوك داسې د بې حيايۍ كوم كار وكړي، چې د هغه اثر متعدي وي، او نورو ته هم ورسيږي، يا د كوم داسې خراب حركت مرتكب شي، چې د هغه ضرر لازمي او يوائې د ده په ځان پورې محدود وي.

ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۪ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۪۟ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ وَجَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۱۳۶﴾

نو ياد كړي دوى الله پس مغفرت وغواړي دوى لپاره د ګناهونو خپلو، او څوك دي چې مغفرت كوي د (ټولو) ګناهونو (هيڅوك يې مغفرت نه كوي) مګر (مغفرت يې كوي) الله، او نه كوي مداومت دوى پر هغه ګناه چې كړې ده دوى، حال دا چې دوى پوهيږي (چې مونږ بد كړي دي)، همدا (متقيان چې ذكر شول) جزاء د دوى مغفرت دى (له جانبه) د رب د دوى، او جنتونه دي چې بهيږي لاندې له (ونو او مانيو د) هغو ويالې، چې تل به وي دوى په هغو (جنتونو) كې، او ښومره ښه دى اجر دعاملينو (دغه مغفرت او جنت).

تفسير: يعني د الله تعالى عظمت او جلال، د ده عذاب او ثواب، د ده حقوق او احكام، د ده د عدالت سره مخامخ كېدل، او د ده وعد او وعيد په زړه كې ياد كړي، او د ده يادونه په ژبه سره هم شروع كړي، ورځخه وويرېږي، او په نامه سره يې وبولي، او د ده د لويي او كبرياء په مقابل كې سر په سجده كېږدي، بيا په هغې شرعي طريقې چې د ګناهونو د استغفار لپاره مقرره ده؛ عفوه او مغفرت وغواړي، مثلاً چې دحقدارانو حق أداء كړي او يا هم ورځخه عفوه وغواړي او د الله تعالى په حضور كې توبه او استغفار وكړي، او په هغې ګناه باندې چې دبشريت په مقتضا ترې صادره شوي ده مدوامت ونكړئ بلكه په دې باندې وپوهيږي، چې حق تعالى د بندګانو رښتيانى توبه مني، كه دى په ندامت او اقلاع سره توبه وباسي، او د ده په حضور كې په خلوصيت او انابت سره حاضر شي، نو دغه خلق هم په دويمه درجه متقيانو كې داخل دي، چې د هغوى لپاره جنت تيار شوى دى، حق تعالى د دې تائبينو ګناه عفوه كوي، او دوى ته پخپل جنت كې ځاى وركوي، او هغه توبه او نېك عمل چې دوى كړى وي، دوى ته د هغه ډېر ښه عوض وركول كيږي.

قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ فَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۳۷﴾

په تحقيق تېرې شوي دي پخوا له تاسې ډېر طريقې (د كفارو د هلاك) نو وګرځئ ! (تګ وكړئ) تاسې په ځمكه (جهان) كې پس وګورئ ! چې څرنګه وو عاقبت (انجام) د نسبت كوونكو د دروغو (رسولانو ته).

تفسير: يعني پخوا هم له تاسې څخه ډېر اقوام او ملل تېر شوي دي، او لويې پېښې شوي دي، او د الله تعالى عادت هم وار په وار معلوم كړى شوى دى، كه له دوى ځنې هغه كسان چې د انبياوو عليهم السلام په عداوت، او د حق د تكذيب لپاره يې ملاوې تړلې دي، او د الله جل جلاله او د ده (رسول) له تصديق او اطاعت څخه يې مخ اړولى دى، او

په حرامخوری، ظلم او عصیان باندې یې اصرار کړی دی، دهغوی انجام څومره خراب شوی دی ! او د دوی د تباهی علائم او آثار وګورئ، چې نن هم ستاسې د مملکت په شاوخوا کې نږدې موجود دي.

هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾

دا (قرآن) بیان دی لپاره د (ټولو) خلقو او هدایت (لاربښوونه) او موعظت (نصیحت) دی پرهېزګارانو ته.

**تفسیر:** یعنې د عامو خلقو د غوږونو د خلاصولو لپاره دغه قرآني مضامین بیانېږي، چې د هغو د اورېدلو څخه له الله تعالی څنې وېرېدونکي خلق هدایت او پند اخلي، مګر هغه کسان چې د دوی په زړونو کې د الله تعالی خوف نه وي، نو دوی به د نصیحت کوونکو له تنبیهاتو څنې څه ګټه واخلي؟

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۹﴾

او مه سستېږئ تاسې ! او مه خپه کېږئ تاسې ! او هم دا تاسې غالبان یئ که یئ تاسې مؤمنان (په حقه سره).

**تفسیر:** دا آیتونه د (أحد) د غزا په باره کې نازل شوي دي، کله چې مجاهدین د ډېرو زخمونو له لاسه ټوټې ټوټې وو، او د دوی د ډېرو لویولویو جنګیالیو او نومیالیو شهیدانو غوږونه او پوزې او نور اعضاء پرې کړی شوي او مثله وو، او د دوی جنازې تر سترګو لاندې پرتې وې، محمد «علیه الصلاة والسلام» هم د شقیانو له لاسه په مات غاښ او ژوبل تندي په وینو رنګ په نظر راته، ظاهرا له هر لوري د ماتې او شکست منظره ښکارېده، د دې ناامیدیو او سختیو په هجوم کې د الله تعالی دا زورور او مؤثر بشارت غوږونو ته ورسېد: ﴿وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾ وګورئ ! چې له ډېرو سختیو څنې مه وېرېږئ ! او د الله تعالی د دښمنانو په مقابل کې نامردي، سستي، او بې زړه توب مه کوئ !، او په دې درپېښو شویو حوادثو او مصائبو باندې مه غمجن کېږئ ! او مات زړه او ورانه خوله مه کېنئ، چې دا له تاسې سره وړ او د مؤمنانو دستور نه دی ! او په یاد ولرئ چې هم دا نن هم دا تاسې معزز، سرلوړي، او غیرتمن یئ ! چې د حق په حمایت کې تکلیفونه تېروئ، او ځانونه قربانوئ ! نو په یقین سره وروستنی بری هم ستاسې دی، او په پای (آخر) کې هم دا تاسې غالب او کامیاب یئ، خو په دې شرط سره چې د ایمان او ایقان په لاره مستقیم ووسئ ! او د الله تعالی پر وعدو پوره باور ولرئ ! او له «جهاد» في سبیل الله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له اطاعت څخه قدم بېرته وانخلئ !.

اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ؕ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ۚ

که ورسېږي تاسې ته زخم نو په تحقیق رسېدلی دی قوم (د کفارو) ته (هم) زخم په شان د زخم ستاسې، او دا ورځې (د ژوندون) اړوو راړوو یې (په وار) په منځ د خلقو کې.

**تفسیر:** هغه شدید نقصان چې مسلمانانو ته په جنګ کې رسېدلی وو، دوی له هغه څنې ډېر خپه او غمجن وو، برسېره پر هغه د منافقانو او دښمنانو د ډېرې طعنې څخه هم ډېر په ربړونو کې وو، منافقانو به ویل: «که محمد په رښتیا سره د الله رسول وای، نو دومره نقصانونه به ولې ورته رسېدل؟ یا دلږې مودې له مخې به ولې ماتې ورته پېښېدې؟.

په دې آیتونو کې الله تعالی مسلمانانو ته تسلي ورکړه، چې که په دې غزا کې تاسې ته ربړ او تکلیف در پېښ شو، نو تر دې د مخه همدا راز تکلیفونه مقابل لوري ته هم رسیدلي دي، د «احد» په غزا کې ستاسې (۷۵) سړي شهیدان او ډېر غازیان زخمیان شول، حال دا چې یو کال پخوا له دې نه د «بدر» په غزا کې د کفارو اویا سړي مردار، ډېر سړي

يې زخميان، اويا تنه يې ګرفتار شول، او لومړى په هم دې «أحد» كې د دوى ډېر جنګيالي مقتول او مجروح شول، لكه چې د ﴿وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللهُ وَعْدَهٗۤ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ﴾ له الفاظو څخه ښكاره ده، لنډه يې دا چې خپل نقصان د هغوى له نقصان سره موازنه او پرتله كړئ! څو دغه خبره له ورا درښكاره شي، چې تاسې ته د غم او خپګان هيڅ يوه موقع نه ده پاتې.

وَلِيَعْلَمَ اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او لپاره د دې چې معلوم كړي الله هغه كسان چې ايمان لرونكي دي.

تفسير: يعني د دې لپاره چې الله تعالى رښتين ايمان لرونكي له منافقانو څخه جلا (جدا) كړي، او د دواړو رنګونه او بڼې جلا جلا په نظر راشي.

وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ۭ وَاللهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾

او (بل د دې لپاره چې) ونيسي (الله) له تاسې څخه شهيدان، او الله محبت نه كوي ظالمانو (كافرانو) سره.

تفسير: له ظالمانو څخه كه د مشركانو هغه ډله مراد وي، چې د «احد» په غزا كې د مسلمانانو په مخامخ كې ولاړ وو، نو مطلب به يې داسې كيږي چې: د دوى د دې عارضي برى سبب دا نه دى چې پاک الله له دوى سره محبت لري، بلكه دا برى نورو اسبابو باندې بنا دى، او كه له ظالمانو څخه هغه منافقين مراد وي چې په عين موقع كې له مسلمانانو څخه جلا (جدا) شول، نو دا راښكاروي: چې دوى د الله تعالى په نزد مبغوض دي، نو څكه د ايمان او شهادت له لوېې درجې څخه بې برخې او لكه مرداره لرې وغورځول شول.

وَلِيُمَحِّصَ اللهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۱﴾

او (بل لپاره د دې چې پاک او صاف كړي) الله (له ګناه څخه) هغه كسان چې ايمان لرونكي دي او هلاک كړي (الله) كافران.

تفسير: يعني ماتې او برى دواړه بدليدونكي شيان دي، خو په دې غزا كې يې مسلمانانو لره د شهادت د لوړې درجې وركړه مطلوب وه، او د مؤمنانو او منافقانو آزموينه اومعلومول يا له ګناهونو څخه پاكول مقصود وو، او په ورو ورو سره د كافرانو فنا او محو كول منظور وو، چې هغوى په عارضي غلبې او مؤقتي برې باندې مسرور اومغرور شي، او په كفر او طغيان كې له پخوا نه لا زياته ترقي او پرمختګ وكړي، او ښه په كې بوخت او لګيا شي، او د الله تعالى د قهر او غضب ښه وړ او مستحق وګرځي، نو د دې له امله دا عارضي ماته د مسلمانانو په برخه شوه، كه نه پاک الله له كفارو څخه خوښ او راضي نه دى.

اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۲﴾

(بلكه) آيا ګمان كوئ تاسې د دې چې ننه به وځئ جنت ته، حال دا چې معلوم كړى به نه وي الله (په علم الظهور سره هم) هغه كسان چې جهاد يې كړى دى له تاسې څخه، او (نه وي په علم الظهور سره) معلوم كړي (الله) صابران (ثابتان په سختيو كې).

تفسير: يعني الله تعالى تاسې د جنت دغه اعلى مقاماتو او لوړو درجو ته رسوي، نو آيا تاسې داسې ګڼئ چې هم داسې بې له هيڅ سختى تېرولو څخه آرام هم هغه ځاى ته رسېږئ؟ او الله تعالى به له تاسې څخه پوښتنه نه كوي؟ او امتحان

به له تاسې څخه نه اخلي؟، چې څومره کسان له تاسې څنې د الله تعالی په لاره کې جنګیدونکي دي؟ او څومره کسان د جنګ په وخت کې ثابت قدم پاتې کېدونکي دي؟ داسې خیال مه کوئ، ځکه چې لوړو ځایونو ته هم هغه سړی رسېدلی شي، چې د الله تعالی په لاره کې هر ډول مصائب او متاعب پر ځان اخلي، مشکلات تېروي، او دځان قربانولو او مصاعبو لپاره تل تیار ولاړ وي.

وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ أَنْ تَلْقَوْهُ فَقَدْ رَأَيْتُمُوهُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ ﴿۱۴۳﴾

او خامخا په تحقیق وئ تاسې چې آرزو به مو کوله د مرګ پخوا له هغه چې تاسې پېښېدئ پر دغه (مرګ) نو په تحقیق ولید تاسې دا (مرګ) حال دا چې تاسې (ورته) کتل.

**تفسیر:** هم هغه اصحاب کرام رضي الله عنهم چې د «بدر» د غزا له شرکته بې برخې پاتې وو، دوی د «بدر» د شهیدانو د ډېرو فضائلو له اورېدلو څنې داسې تمنا او ارزو کوله، چې کاشکې الله جل جلاله بیا موقع راولي، چې مونږ هم د الله په لاره کې ووژلی شو، او د شهادت دا لوړه مرتبه حاصله کړو، هم دوی د «أحد» په غزا کې دغه مشوره وړاندې کړې وه، چې راځئ له مدینې منورې نه د باندې ووځو ! او هلته له غلیم سره وجنګیږو، دوی ته فرمایي: هغه شی چې تاسې یې تمنا کوله، ستاسې تر ستر ګو لاندې راغی، نو اوس د پرمختګ په ځای، بېرته ولې ځان باسئ؟، په حدیث کې راغلي دي چې: «د دښمن د لیدلو تمنا مه کوئ ! مګر که ورسره مخامخ شئ، نو ثابت قدم اوسئ».

وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ ﴿۱۴۴﴾

او نه دی محمد مګر (دی) یو رسول (د الله)، په تحقیق تېر شوي دي له ده نه پخوا (ډېر) رسولان، آیا نو که مړ شي (محمد) یا شهید کړی شي نو بېرته به وګرځئ تاسې پر پوندو خپلو (کفر ته)، او هر څوک چې بېرته وګرځېد، په پوندو خپلو (کفر ته) نو له سره به زیان ونه رسوي الله ته هیڅ شی، او ژر به جزاء ورکړي الله شکر ګذارانو ته (د اسلام په نعمت).

**تفسیر:** واقعه داده چې د «احد» په غزا کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د جنګ نقشه جوړه کړه، د ګردو صفونو له جوړولو څخه وروسته یوه دره پاتې شوه، چې له هغې درې (وټ) څخه اندېښنه وه چې د کفارو لښکر د شا له لوري یرغل (حمله) رانه وړي، نو د دې درې په یوې لوړې څوکې کې رسول مبارک صلی الله علیه وسلم پنځوس تنه زورور غشي ویشتونکي وټاکل، چې د هغوی رئیس عبد الله بن جُبیر رضي الله عنهم وو، او پر دوی یې زیات تاکید وکړ چې «مونږ په هر حالت چې یو، ودې اوسو خو تاسې هرو مرو (خامخا) همدا څوکه وساتئ ! او پخپلو غشو سره د همدغې درې ساتنه وکړئ ! اعم له دې نه چې نور مجاهدین غالب وي، که مغلوب، تر دې که تاسې ووینئ چې مرغان د هغوی غوښې خوري، خو بیا هم له خپله ځایه مه خوځیږئ !.

خو کله چې دښمن مات شو، او مجاهدینو د غنیمت پر اموالو باندې قبضه کول شروع کړل، کله چې دغه ننداره هغو (۵۰) تنو غشو ویشتونکو ته ورخرګنده شوه، نو یې داسې ګومان وکړ چې ګواکې فتح کامله شوه، او دښمن تښتي، نو څمونږ دلته چټې (بېکاره) کیناستل څه پکار دي؟ ښه خو داده چې د غلیم تعقیب وکړو، او په غنیمت کې هم خپله برخه واخلو، عبد الله بن جُبیر (رضي الله عنه) د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم توصیه او ارشاد دوی ته ور په یاد کړ، خو دوی هسې وګڼل چې لکه مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم اصلي مقصد او هدف بیخي پوره کړی دی، اوس نو په دې ځای کې ولې وزګار کینو.

په دې خيال کې ګرد تېروتل، يواځې عبد الله بن جبير رضي الله تعالى عنه له (۱۱) تنو نورو ملګرو رضوان الله تعالى عليهم سره د هغې درې د ساتنې لپاره پاتې شول، د مشرکينو سواره د خالد بن وليد په رياست چې تر دغه وخت پورې په اسلام لا مشرف شوى نه وو، د تېښتې په منځ کې يو خلې بېرته واپس شوه، او د هم دغې درې له لورې يې پر مسلمانانو حمله (يرغل) يووړ، لسو دولسو غشو ويشتونکو ونشو کولى چې د هغو سورو مخه ونيسي، خو سره له هغه هم عبد الله بن جُبير سره د خپلو ملګرو رضي الله تعالى عنهم ښه په بهادرۍ سره تر دې حده پورې مدافعه وکړه، چې ځانونه يې ګرد سره قربان کړل.

مسلمانان مجاهدين چې د شاه له جانبه بېخي مطمئن وو، ناڅاپه پر دوى باندې د مشرکانو سواره ورغلل، او دمخې له لورې د مشرکينو هغه فوځونه هم بېرته وروګرځېدل چې پخوا له دې نه تښتېدلي وو، او سخت جنګونه سره ونښتل، او مجاهدين د کفارو له لورې محصور او سخت ويروونکي جنګ ته مجبور شول، نو ځکه ډېر مسلمانان سره شهيدان او زخميان شول.

په همدې تهلکه او پرېشانۍ کې (ابن قميئه) يوه غټه تيږه (ګټه) د رسول الله مبارک په لورې ورووېشته، چې د هغې په اثر د رسول الله مبارک پاک غاښ شهيد او منوره څېره يې زخمي او ژوبله شوه، (ابن قميئه) غوښتل چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم وژلو ته هم اقدام وکړي، مګر اسلامي علَم وړونکي «مصعب بن عُمير رضي الله عنه» مدافعه وکړه، خو رسول الله مبارک د زخم له شدته پر ځمکه ولوېد، کوم شيطان غږ وکړ، چې «محمد ووژل شو»، د دې بدې خبرې په اورېدلو سره مسلمانان وارخطا شول، او پښې يې سستې شوې، او لاس تر زنې پاتې شول، ځينې مسلمانان مبهوت او حيران کيناستل، ځينو ضعفاوو ته هسې خيال پيدا شو، چې د مشرکانو له رئيس ابو سفيان څخې پناه وغواړي، ځينو منافقانو وويل: «کله چې محمد ووژل شو، نو مونږ اسلام بېخي پرېږدو، او خپلو پخوانيو مذهبونو ته بېرته ګرځو».

په دې وخت کې أنس بن النضر د أنس بن مالک تره وويل: «که محمد صلى الله عليه وسلم په شهادت ورسېد، نو د محمد صلى الله عليه و سلم رب خو ژوندى دى، او وروسته د محمد صلى الله عليه وسلم له شهادت څخه څمونږ ژوند څه پکار دى؟ په دې مبارکه لاره کې چې رسول الله مبارک خپل ځان قربان کړى دى، ښايي چې مونږ هم ځانونه قربان کړو !»، دا يې وويل او پر کفارو يې حمله او يرغل ورووړ، او د جنګ ډګر ته لکه زمرى ور ور‌اندې شو، او تر هغه پورې په بهادرۍ وجنګېد، چې په شهادت ورسېد، رضي الله عنه !.

په دې وخت کې د رسول الله مبارک غږ پورته شو:

«إلي عباد الله ! أنا رسول الله» «څما په لورې راشئ ! اى د الله بندګانو، زه د الله رسول يم» کعب بن مالک رضي الله عنه د رسول الله مبارک غږ وپېژاند او چيغه يې وکړه: «اى مسلمانانو ! زېرى مې درباندې، چې رسول الله مبارک لله الحمد ژوندى دى !»، دلته ددې غږ د اورېدلو په اثر ګرد مسلمانان هم هغه لور ته ورتګ شروع کړ، او سمدلاسه (۳۰) تنه اصحاب د ده مبارک په ګرد چاپېر کې غونډ شول، او په سخته مدافعه يې شروع وکړه، او د مشرکانو فوځ يې بيا سره تيت او پرک (منتشر) کړ، په دې موقع کې سعد بن أبي وقاص، طلحه، أبو طلحه، قتاده بن النعمان، او نورو أصحابو رضي الله عنهم أجمعين ډېر زيات ربړونه وګالل (تکليفونه تېر کړل)، او خپل سرونه يې پخپلو ورغويو کې ونيول، او سخت جنګونه يې له کفارو سره وکړل، تر دې چې مشرکانو بيخي ميدان پرېښود، او بيا تېښتې ته اړ او مجبور شول، او دا آيت نازل شو: ﴿وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ﴾ الآيه ـ يعنې محمد صلى الله عليه وسلم هم يو بنده او رسول د الله دى، الله خو نه دى، له ده څنې پخوا ډېر رسولان تېر شوي دي، چې وروسته له هغوى څنې هغوى تابعانو د هغوى دين ساتلى دى، او خپل ځان او مال ترې جار (قربان) کړى دى، مګر هغه دين يې له لاسه نه دى ايستلى، او تل يې قائم ساتلى دى.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم انتقال له دې فاني دنيا څنې کومه د تعجب خبره نه ده، که دا وخت نه وي نو په بل کوم وخت کې خو هرو مرو (خامخا) دې وفات کيږي، که کوم وخت دې وفات يا بالفرض په شهادت ورسيږي، نو

آیا تاسې به د دین له خدمت، یا د هغه له حفاظت نه ژر تر ژره پر خپلو پوندو بېرته ګرځئ؟ او له «جهاد» في سبیل الله څخه به مخ اړوئ؟ لکه چې اوس د ده د قتل د خبر له اورېدو څخه ډېر کسان بې حوصلې شول، او له پښو ولوېدل، یا د منافقینو له مشورو سره سم -العیاذ بالله- بیخي مخ اړوئ؟ او بېرته کافران کیږئ؟ له تاسې څخه داسې هیله هیڅکله نه کیږي، که څوک داسې وکړي نو خپل ځان ته به نقصان ورسوي، اوالله تعالی ته هیڅ زیان نشي رسولی، الله جل جلاله ستاسې مرستې (مدد) ته محتاج نه دی، بلکه تاسې شکر وکړئ که هغه تاسې ته د دین لار نه وي درښودلې، او د دین په خدمت کې یې نه وئ مشغول کړي نو ستاسې حال به څه و؟

«او شکر هم دا دی چې مونږ لا زیات د دین په خدمت کې مضبوط او ثابت قدم اوسو»، په دې کې اشاره ده چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د وفات په تقریب کې به ځینې خلق له دین څخه اوړي، او هغه کسان چې په دین باندې قائم پاتې وي، هغوی ته به لوی اجر وي، لکه چې هم داسې پېښه هم وشوه، چې ډېر خلق مرتدان شول، او د صدیق اکبر رضي الله تعالی عنه په وسیله بېرته په اسلام مشرف شول، او ځینې ترې ووژل شول.

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ كِتَٰبًا مُّؤَجَّلًا

او نشته هیڅ نفس لره دا چې مړ شي مګر په اذن (حکم) د الله سره، چې لیکلی شوی دی (دا مرګ) په یوه مقرر وخت کې (چې نه وړاندې او نه وروسته کیږي).

تفسیر: نو هر کله چې هیڅوک بې د الله تعالی له حکمه نه شي مړ کېدای، اګر که د موت ډېر اسباب هم سره غونډ شوي وي، او د هر سړي موت په مقرر وخت کې راتلونکی دی، نو پر الله تعالی باندې توکل کوونکو ته له دې مرګه ویرېدل نه ښایي، او نه د کوم لوي یا واړه د موت د اورېدلو له خبره ښایي چې سړی مایوس او نا امیده شي، او بیخي غمجن کیني.

وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا

او هر څوک چې غواړي (په عمل خپل سره بدل) ثواب د دې دنیا نو ور به کړو مونږ هغه ته له هم دغه (دنیوي بدل).

تفسیر: یعنې که الله جل جلاله اراده وفرمایي، لکه چې په (۱۵) جزء د (بني اسرائیل سورت) په ۱۸ آیت ۲ رکوع کې مونږ داسې یو آیت لولو: ﴿عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاءُ لِمَن نُّرِيدُ﴾.

وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الْآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا

او هر څوک چې غواړي (په عمل خپل سره بدل) ثواب د آخرت، نو ور به کړو مونږ هغه ته له هم دغه (أخروي ثواب).

وَسَنَجْزِي الشَّٰكِرِينَ ﴿١٤٥﴾

او ژر به جزا (ثواب) ورکړو مونږ شکر ګذارو (احسان منونکو) ته.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې پر دغه دین ثابت قدم پاتې کیږي، هغوی ته هم په دین او هم په دنیا کې اجر ور په برخه کیږي، خو که څوک د دې لوی نعمت په قدر باندې پوهیږي (کذا في الموضح).

وَكَأَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۶﴾

او ډېر له انبیاوو څخه وو چې د دوی په مرسته (مدد) جنګېدلي وو رباني سړي ډېر، نو هیڅ قدر به نه سستېدل هغوی له سببه د هغه تکلیفه چې رسېدلی به وو دوی ته په لاره د الله کې، او نه ضعیفان کېدل (په جنګ کې) او نه به سر ټیټاوه دوی (دښمن ته)، او الله محبت کوي صبر کوونکو سره.

تفسیر: یعنې له تاسې څخه پخوا ډېر د الله تعالی خاص بندګان له انبیاوو علیهم السلام سره مله شوي، له کفارو سره یې جنګ کړی دی، چې په هغو کې ډېر زیات تکالیف او ربړونه یې ګاللي دي، خو په دغو شدائدو او مصائبو کې هم دهغوی په ارادو کې هیڅ یوه سستي نه وه واقع شوې، نه یې همت بایلودلی وو، نه یې خپل ځان کمزوری ښکاراوه، نه یې د دښمن په مخ کې سر ښکته کاوه، الله تعالی له هسې ثابت قدمو بندګانو سره خاص محبت لري.

په دې سره هغو مسلمانانو ته تنبیه ورکوي او په غیرت یې راولي، چې په «اُحُد» کې له دوی څخه کمزوري څرګنده شوې وه.

وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِيْٓ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾

او نه وه وینا د دوی (یعنې وینا د مجاهدینو) مګر دا چې ویل دوی: ای ربه څمونږه ! وبخښه مونږ ته ګناهونه څمونږ ! او له حده تېرېدل څمونږ ! په (دې) کار څمونږ کې، او ثابت (ټینګ کړه) قدمونه څمونږ (په طاعت خپل کې) ! او مرسته (مدد) وکړه له مونږ سره په قوم کافرانو !.

تفسیر: یعنې د مصائبو او شدائدو په هجوم کې یې نه د وېرې کومه خبره وویله، او نه له مقابلې څخه ستانه (واپس) شول، او نه یې د دښمن اطاعت ومانه، نه یې یوه خبره له خپلې خولې څخه وویسته، که یې وویل، خو همدا یې وویل: «ای الله ! ته څمونږ ټول تقصیرات عفوه کړه ! او څمونږ ګرد تېري را معاف کړه ! او څمونږ زړونه مضبوط او ثابت وساته ! څو څمونږ قدمونه د حق له لارې څخه ونه ښویږي، او مونږ ته د کافرانو په مقابله کې مرسته (مدد) راکړه !».

دوی هسې ګڼي چې ډېر ځلې د مصائبو په راتګ کې د خلقو ګناهونه او د هغوی تقصیرات دخل لري، او له مونږ څخه کوم سړی دا سې دعوی کولی شي، چې له هغه څخه هیڅکله هیڅ یو تقصیر نه دی صادر شوی.

په هر حال د دې په ځای چې له مصیبت څخه سړی وویرېږي، او خلقو ته پناه یوسي، ښه خو داده چې پاک پروردګار ته پناه یوسي، او هغه مالك الملك والملكوت صاحب الكبرياء والجبروت ته دې سر ښکته کړي !.

فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۴۸﴾

نو ورکړل دوی ته الله ثواب د دنیا او ښه ثواب د آخرت، او الله محبت کوي د نیکي کوونکو سره.

تفسیر: یعنې په دنیا کې یې د هغوی فتحه او ظفر په برخه کړ، وجاهت او قبول یې ورعطا کړ، او د آخرت لوی ثواب یې په برخه شو، وګورئ ! هغه کسان چې له الله تعالی سره خپله معامله په ښه ډول سره ساتي، او ښه کارونه کوي. له هغوی سره الله تعالی داسې محبت کوي، او هغوی ته داسې ثمره ورکوي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تُطِيعُواْ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰٓ أَعْقَٰبِكُمْ فَتَنقَلِبُواْ خَٰسِرِينَ ﴿١٤٩﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) که اطاعت وکړئ تاسې د هغو کسانو چې کافران شوي دي؛ نو بېرته به وګرځوي دغه (کفار) تاسې په پوندو ستاسې (د کفر خوا ته) نو وبه ګرځئ تاسې زیانکاران (یعني بیا به مو کافران کړي).

بَلِ ٱللَّهُ مَوْلَىٰكُمْ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلنَّٰصِرِينَ ﴿١٥٠﴾

بلکه الله مولی مرسته کوونکی، یا (دوست لرونکی) ستاسې دی، او هم دی ډېر ښه د ټولو مرسته کوونکو دی.

تفسیر: نو ځکه ښايي د هم دغه الله تعالی چې ځمونږ مولی او (خیر الناصرین) دی؛ خبره ومنله شي ! او په مرسته باندې یې اطمینان وشي !، د هرچا چې مددګار الله تعالی وي، هغه به دې ته څه احتیاج لري، چې د الله تعالی د دښمنانو د معاونت او مرستې انتظار ولري، یا به د هغوی په مخ کې د اطاعت غاړه ږدي.

سَنُلْقِى فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلرُّعْبَ بِمَآ أَشْرَكُواْ بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ سُلْطَٰنًا ۖ
وَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ۚ وَبِئْسَ مَثْوَى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٥١﴾

ژر به وغورځووو مونږ په زړونو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي رعب (هیبت ـ وېره) په سبب د شریک نیولو د دوی د الله سره هغه شي چې نه دی نازل کړی (الله) په (شریک نیولو د) هغه کوم برهان (دلیل) او ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی، او بد ځای د هستوګنې د ظالمانو دی (دا اور د دوزخ).

تفسیر: یعنې څرنګه چې أبوسفیان سره له خپلو فوځونو د جنګ له میدانه نا أمیده وتښتېد، په لار کې داسې خیال ورته پیدا شو چې: «مونږ ولې یو اسلامي ستړی ستومان ژوبل فوځ همغسې پرېښود؟ او ولې ترې راغلو؟ راځئ ! چې بېرته وګرځو، او د دوی کار سره تمام کړو»، مګر د حق تعالی د هیبت او د اسلام د رعب په اثر یې همت ونشو کړی، چې دا خیال عملي کړي، پرته له دې مسلمانانو مجاهدینو تر (حمراء الأسد) پورې کفار تعقیب کړل، او وروسته له هغه یې بیا کفارو ته هیڅ موقع ورنه کړه چې د «أحد» واقعات بیا اعاده شي.

تنبیه: تر هغه چې مسلمانان حقیقي مسلمانان وو، تل کفار له دوی څخه خائف او مرعوب وو، بلکه تر نن پورې مونږ مشاهده کوو چې د مسلمانانو د سخت انتشار، تشتت، ضعف، او تنزل سره سره د دنیا ګرد کافران له دوی ویدو ځمریانو څخه ویرېږي، او تل په دې فکر کې دي چې دا توریالی قوم بیا ویښ نه شي، په علمي او مذهبي مناظرو کې هم د اسلام همدا رعب مشاهده کېږي، په حدیث شریف کې راغلي دي چې: «زما رُعب د یوې میاشتې له مسافې څخه د دښمنانو په زړونو کې اچول شوی دی»، بېشکه د هم هغه اثر دی، چې مسلمه أمت ته هم په برخه شوی دی: فلله الحمد علی ذلک والمنة.

وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ ٱللَّهُ وَعْدَهُۥٓ إِذْ تَحُسُّونَهُم بِإِذْنِهِۦ ۖ

او خامخا په تحقیق رښتیا کړه تاسې ته الله وعده خپله په هغه وخت کې کله چې وژل تاسې کافران په اذن (حکم) د الله سره.

تفسير: لکه چې الله تعالی خپله وعده د «أحد» د جنګک په ابتداء کې ربنتيا ښکاره کړه، او مسلمانانو د الله تعالی په امر باندې کافران تار په تار او ډګر يې په وينو سور کړ، (۷) يا (۹) هغه سړي چې د هغوی په لاسونو کې د مشرکانو بيرغ وو، پرله پسې يې ووژل، او ځای په ځای يې کوټه کړل، او د ګردو ککرۍ هلته په وينو سرې او ککړې شوې، په آخر کې کفار د ډېرې وېرې له لاسه بد حواسه شول، او ګرد وتښتېدل، مسلمانانو د فتح او برې ځيره صافه وليدله، او په مخ کې ورته د غنيمت د اموالو انبارونه پراته وو.

حَتَّىٰٓ إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَٰزَعْتُمْ فِى ٱلْأَمْرِ وَعَصَيْتُم

تر هغه وخته پورې چې بې زړه شوئ تاسې او (پخپلو منځونو کې) سره مخالف شوئ په امر (د نبي) کې او نافرماني وکړه تاسې (د خپل نبي).

تفسير: يعنې رسول الله صلی الله عليه وسلم چې کوم حکم غشو ويشتونکو ته ورکړی وو، له هغه ځنې مخالف کار وکړ شو، او دوی پخپلو منځونو کې په جګړو سره اخته شول، ځنيو وويل چې: «مونږ لره ښايي چې هم دلته ټينګ ودرېږو، او هيڅ ترې ونه خوځيږو»، ډېرو کسانو وويل چې: «اوس هيڅ ضرورت نشته، چې دلته وزګار کينو، ځئ ! چې ځو غنيمت حاصل کړو»، آخر زياترو غشو ويشتونکو خپل سنګرونه (مورچې) پرېښودل، او مشرکانو له هم هغه ځايه ناڅاپه پرې حمله (يرغل) راوړ، له بلې خوا د رسول الله مبارک د قتل خبر مشهور شو، دغو شيانو د دوی پر زړونو کې کمزوري پيدا کړه، چې د هغه نتيجه د بې زړه توب (فشل) په صورت ظاهره شوه، ګواکې د بې زړه توب سبب جګړه، او دجګړې سبب عصيان وو.

مِّنۢ بَعْدِ مَآ أَرَىٰكُم مَّا تُحِبُّونَ ۚ مِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلدُّنْيَا وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ ٱلْءَاخِرَةَ ۚ

له هغه وروسته چې دروښود تاسې ته (الله) هغه شی چې ستاسې خوښ وو (له نصرت او غنيمت څخه) ځينې له تاسې هغه دي چې خوښوي دنيا (دا ژوندون لږ خسيس) او ځينې ستاسې هغه دي چې خوښوي آخرت.

ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۖ

بيا (الله) وګرځولئ تاسې له کافرانو څخه (په تېښته سره) لپاره د دې چې وازمويي تاسې.

تفسير: يعنې پخوا خو کفار ستاسې لـه مخې تښتېدل، او اوس خو تاسې مسلمانان د هغوی په مخ کې تښتئ ! ستاسې د غلطی او قصور له امله دغه معامله سرچپه شوه، او په دې کې ستاسې آزموينه ده، څو مخلص او غير مخلص مسلمانان صاف پکې ښکاره شي.

وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ ۗ

او خامخا په تحقيق عفوه وکړه (الله تاسې ته).

تفسير: يعنې کومه غلطي چې شوې وه هغه پاک الله تاسې ته بيخي معافه کړه، اوس دغه هيڅا ته جائزه نه ده، چې د دې حرکت له سببه پر بل چا باندې طعن او تشنيع ووايي.

وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵۲﴾

او الله ښتن (مالک) د لوی فضل (رحمت، مهرباني، احسان) دی پر مؤمنانو باندې.

تفسیر: یعني الله تعالی د داسې مهرباني او فضل ښتن (مالک) دی چې د مؤمنانو تقصیرات معافوي، او په عتاب کې هم د لطف او شفقت خوا تل د ده ملحوظه وي.

اِذْ تُصْعِدُوْنَ وَلَا تَلْوٗنَ عَلٰۤى اَحَدٍ وَّالرَّسُوْلُ يَدْعُوْكُمْ فِيْۤ اُخْرٰىكُمْ

(یاد کړئ) هغه وخت چې تلئ منډې وهلې تاسې (بېرته مو شا ګرځوله)، او نه مو کتل هيڅا ته، حال دا چې رسول (د الله) بللئ تاسې وروسته ستاسې.

تفسیر: یعني تاسې تښتېدئ او پر غرونو او میرو باندې ختلئ، او منډې مو وهلې، او له وارخطایي مو شا ته نه کتل، په دې وخت کې رسول الله مبارک ځای په ځای ثابت او مستقیم ولاړ وو، او تاسې یې له دې قبیح حرکت څخه منع کولئ، او تاسې یې خپل لور ته بللئ، مګر تاسې د ډېر تشویش او اضطراب له امله د هغه آواز کله اورېده؟ تر څو چې کعب بن مالک رضي الله تعالی عنه چیغې وکړې، او خلقو دا چیغې واورېدې، او بېرته ستانه شول، او د خپل مقدس رسول صلی الله علیه وسلم په شاو خوا کې سره راټول شول.

فَاَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ لِّكَيْلَا تَحْزَنُوْا عَلٰى مَا فَاتَكُمْ وَلَا مَاۤ اَصَابَكُمْ ؕ

نو سزا یې درکړه تاسې ته یو غم په سبب د بل غم، لپاره د دې چې خپه نه شئ تاسې په هغه شي چې پاتې شو له تاسې (له غنیمت څخه) او نه په هغه شي چې ورسېږ تاسې ته (د جنګ له تکلیف نه).

تفسیر: یعني تاسې د خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم زړه تنګ کړ، چې د هغه په بدل پر تاسې باندې هم تنګي راغله، هو ! د غم په عوض غم درورسېږ تر څو چې وروسته له دې نه مو دا په یاد وي، چې په هر حالت کې نبایي د رسول الله صلی الله علیه وسلم پر حکم باندې ټګ وکړئ ! اعم له دې چې کوم منفعت لکه غنیمت او نور څه ستاسې له لاسه ووځي، یا کومه بلا ستاسې په مخه درشي.

تنبیه: اکثرو مفسرینو د ﴿فَاَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ﴾ معنی داسې کړېده چې: الله تعالی تاسې ته د یوه غم د پاسه بل غم درکړ، یعني یو غم د لومړنۍ فتحې او بري له لاسه وتلو له امله، او بل غم ستاسې د سرېو د وژل کېدلو، او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شهادت د خبر خورېدلو په سبب وو.

ځینو داسې مطلب اخیستی دی چې د فتحې او غنیمت له لاسه وتلو، او د مالي او بدني نقصان ګاللو کوم غم چې وو، دهغه د پاسه یو بل لوی غم تاسې ته درورسېږ؛ چې د هغه له امله هغه پخواني غمونه ګرد له تاسې څخه هېر شول، یعني د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د شهادت آوازه چې د دې غم له شدته وړاندنی وروستنی ګردې خبرې له تاسې هېرې شوې، تر دې چې د رسول کریم «علیه أفضل الصلاة والتسلیم» غږ مو هم وانه ورېد، لکه چې پر یوه لوري د بېخي ملتفت کېدلو په وخت کې له بل لوري څخې طبعا غفلت او ذهول پېښېږي.

وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۵۳﴾

او الله ښه خبردار دی په هغه شي چې تاسې یې کوئ (لکه نور شیان).

تفسیر: یعنې ستاسې له احوالو او نیتونو څخه ښه خبردار دی، او سم له هغو سره به درسره معامله کوي.

ثُمَّ أَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا يَغْشَىٰ طَائِفَةً مِنْكُمْ

بیا یې نازل کړ (راولېږه) پر تاسې باندې وروسته له دې غمه امن (بېغمي) پر کالي د خوب چې لاندې یې کړه یوه طائفه له تاسې (چې مؤمنان وو).

تفسیر: یعنې په دې غزا کې د هر چا په برخه کې چې شهادت وو شهیدان شول، او د هر چا په برخه کې چې ماتې وه ماتې یې وکړه، او هغه مخلص مجاهدین چې د «جهاد» په میدان کې باقي پاتې شول، حق تعالی په هغوی باندې یو راز داسې د خوب پر کالي راوستله، چې په عین ولاړه کې پر کالي یوړل، د طلحه رضي الله تعالی عنه له لاسه څو ځلې چاړه پر ځمکه ولوېده، د ایو حسي اثر له هغه باطني اطمینان او سکون څخه وو، چې په هسې لویه هنګامه او ډېر سخت شور ماشور کې د مؤمنانو پر زړونو باندې محض د الله تعالی په فضل او مرحمت سره وارد شو، او وروسته له هغه د دوی له زړونو څخه د دښمن خوف او وېره بیخي ورکه شوه، دغه کیفیت په عین هم هغه وخت کې ورپېښ شو، چې د مجاهدینو په لښکر کې څه نظم او نسق قائم نه وو، او ډېر شهیدان په خاورو او وینو رنګ پراته وو، مجاهدین د ډېرو زخمونو له امله ټُکر ټُکر وو، د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د قتل آوازه د دوی ګرد فکر، هوښ، حواس وړي وو، ګواکې دغه خوب د وینښدلو لپاره وو، پر مؤمنانو باندې پر کالي راغله، او د دوی هغه ګرده ستوماني او ستړتیا یې له منځه ورکه کړه.

وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ

او بله طائفه وه (له تاسې چې منافقان وو) په تحقیق په فکر کې غورځولي وو دوی نفسونو د دوی.

تفسیر: دا وېریدونکي او خائفان منافقان چې له دوی سره نه د اسلام غم او نه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم څه درد وو، له دوی سره یواځې د دوی د ځان فکر وو، او په هغه کې بیخي ډوب تللي وو، او په خپلو زړونو کې به یې دا فکرونه کول، نه چې د أبو سفیان لښکر بیا کومه حمله او یرغل راوړي، او مونږ ته بیا کوم جنګ او جنجال راپېښ کړي، که داسې وشي نو څمونږ حال به هلته څه وي؟ نو په هسې وېره، اندېښنو، او چرتونو کې پر دوی باندې نه پر کالي او نه خوب راته.

يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ

چې ګمانونه به کول دوی په الله باندې (ګمان) نا حقه (لکه) ګمان د جاهلیت.

تفسیر: یعنې داسې ګمان کوي چې د الله تعالی وعدې چېرې ولاړې؟ معلومیږي چې اوس د اسلام قصه پای (آخر) ته ورسېده، اوس رسول او مسلمانان خپلو کورونو ته بیا بېرته تلونکي نه دي، ګرد هم دلته شهیدان کیږي، لکه چې په ۲۶ جزء د «الفتح» سورت په ۱۲ آیت ۲ رکوع کې فرمایي: ﴿بَلْ ظَنَنْتُمْ أَنْ لَنْ يَنْقَلِبَ الرَّسُولُ وَالْمُؤْمِنُونَ إِلَىٰ أَهْلِيهِمْ أَبَدًا﴾.

يَقُولُونَ هَلْ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ مِنْ شَيْءٍ

وایي دوی چې آیا شته مونږ لره له امره (د نصرت له کاره) څه برخه؟ (هیڅ نشته).

تفسیر: یعنې آیا څمونږ کار څه لا باقي دی، یا بیخي خلاص شوی دی، یا دا چې مونږ ته چې د محمد صلی الله علیه وسلم د مرستیانو څخه یو څه فتح او ظفر په لاس راغی؟.

یا دا معنی څه چې د الله تعالی اراده وه، هغه یې وکړه، څمونږ یا د بل په هغه کې څه واک دی؟ دا د الفاظو ظاهري معنا وه، لیکن هغه چې د دوی د زړونو نیت وو، وروسته له دې نه راځي.

﴿قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته چې) بېشکه امر (د نصرت یا هزیمت کار) ټول خاص الله لره دی، (او هر شی د الله په حکم کیږي).

تفسیر: یعنې دا د منافقانو قول «کلمة حق أرید بها الباطل» دی، بېشکه دا صحیح ده چې ستاسې په لاسونو کې هیڅ نشته، او ټول کارونه د الله تعالی په قدرت او اختیار کې دي، د هر چا په نسبت چې اراده وفرمایي، د هغه حال سنبالوي، یا یې له جنجاله ډکوي، غالب یا یې مغلوبوي، آفت ور رسوي، یا راحت برۍ یې په برخه کوي، یا ناکامي، هم دا یوه واقعه د یوه قوم لپاره رحمت او د بل قوم لپاره زحمت ګرځوي.

﴿يُخْفُونَ فِي أَنفُسِهِم مَّا لَا يُبْدُونَ لَكَ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هَاهُنَا﴾

پټوي دا (منافقان) په نفسونو (زړونو) خپلو کې هغه (خبرې) چې نه یې درښکاروي تاته (ای محمده !)، وایي دغه (منافقان یو تر بله): «که چېرې وای مونږ لره له امره (د نصرت له کاره) یو شی، نو نه به وو وژلي شوي مونږ دلته (په دې غزا د «أحد» کې).

تفسیر: د دوی د زړه پټه خبره دا وه چې ﴿هَل لَّنَا مِنَ الْأَمْرِ مِن شَيْءٍ﴾ به یې ویل، او په زړه کې به یې د هغه معنی داسې کوله ﴿مَّا قُتِلْنَا هَاهُنَا﴾ او له مخلصو مسلمانانو څخه به جلا کېدل، او پخپلو منځونو کې به یې سره ویل: «خانه ! دوی په اول کې څمونږ خبرو ته غوږ کېښنود، او د څو سرتېرو او نا تجربه کارو ځلمیانو په وینا سره له مدینې څخه د باندې د غزا لپاره ووتل، آخر یې پخپلو مخونونو باندې سختې څپېړې وخوړلې، که لږ څه واک (قبضه) او اختیار څمونږ په لاس کې وی، او څمونږ په مشورو باندې یې عمل کړی وای؛ نو دومره نقصانونه به یې ولې ګالل (تېرول)، او څمونږ له ګوند څخه به ولې دومره سړي وژل کېدل؟ (زیاتره منافقین نسبا د مدینې منورې له انصارو سره شامل وو، نو ځکه یې په ﴿مَّا قُتِلْنَا هَاهُنَا﴾ کې د هغوی وژل د خپل ځان وژل وبلل)، یا دا مطلب که د رسول الله مبارک له وینا سره سم فتح او ظفر او غلبه د مسلمانانو لپاره وای، نو دا د قتل او جرحی مصیبت به ولې پر مونږ باندې راته.

﴿قُل لَّوْ كُنتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمْ﴾

نو ووایه (ای محمده ! دوی ته) که وی تاسې په کورونو خپلو کې (نو) خامخا به راوتلي وو هغه کسان چې مقرر شوی وو په دوی باندې وژل طرف د ځایو د پرېوتلو خپلو ته.

تفسیر: یعنې له دې افسوس څخه هیڅ په لاس نه درځي، الله تعالی د هر چا د اجل او سبب وخت لیکلی دی، هیڅکله هغه نه بدلیږي، که تاسې پخپلو کورونو کې هم پټېدئ، او فرض یې کړئ که ستاسې رایه هم آورېده کېدی، نو بیا به هم هغه کسان چې د هغوی وژل کېدل د «أحد» په نږدې ځایونو کې مقدر وو، خامخا به په یو نه یو سبب سره هم هغه خوا ته تلل، او هم هغلته به وژل کېدل، دا د الله تعالی انعام دی په کوم ځای کې چې د هغوی وژل مقدر وو، هم هغلته ووژل شول، مګر د الله تعالی په لاره کې په ډېره زړورتیا او خوښی سره شهیدان شول.

وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿١٥٤﴾

او (دغه معامله الله تعالی په أحد کې وکړه) لپاره د دې چې وازمويي الله هغه شی چې په سينو (زړونو) ستاسې کې دی، او لپاره د دې چې ښکاره کړي (الله) هغه شی چې په زړونو ستاسې کې دی، او الله ښه عالم دی په هغو خبرو چې په سينو کې پرتې دي (لکه نور شيان).

تفسير: مقصود دا وو چې ستاسې له ګردو څخه يو امتحان واخيستل شي، تر څو هر هغه شيان چې ستاسې په زړونو کې دي هغه د باندې ووځي، د امتحان په بټۍ کې سره او ناسره يخپله سره بيل کړي، مخلصين د خپلو بريو صله او انعام ومومي، او د هغوی زړونه د سبا لپاره له وسوسو او کمزوريو څخنې پاک او صاف شي، او د منافقانو د زړونو نفاق ښکاره شي، او خلق په ښکاره ډول د دوی له باطني پليتۍ څخه خبر کړي.

إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا ۖ وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٥٥﴾

بېشکه هغه کسان (له تاسې) چې وګرځېدل دوی (له جنګ نه) په هغې ورځې کې چې مخامخ شول سره دواړه فوځونه، بېشکه همدا خبره ده چې ښويولي وو دوی لره شيطان په سبب (د شامت) د ځينو هغو ګناهونو چې کړي وو دوی، او خامخا په تحقيق عفوه کړېده الله دوی ته، بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ښه تحمل کوونکی دی (د عقوبت په تأخير د رجوع لپاره).

تفسير: له مخلصينو څخه هم ځنې وختونه څه وړه يا لويه ګناه صادريږي، همغسې چې له يوه طاعت څخه د بل طاعت توفيق زياتيږي، هم داسې د يوې ګناه له نحوسته شيطان ته موقع په لاس ورځي، او سړی د نورو غلطيو او ګناهونو په لوري ښويوي، او ورته چمتو (تيار) کوي يې.

د «احد» په غزا کې هم هغه مخلص مسلمانان چې خپل سنګرونه (مورچې) يې پرېښې وو، دا کار يې د کومې پخوانۍ ګناه له شامته وو چې شيطان دوی تېر ايستل، او ويې ښويول يوه ګناه خو دا وه، چې ډېرو غشو ويشتونکو د رسول کريم صلی الله عليه وسلم د حکم اطاعت و نه کړ، مګر د الله تعالی فضل وګوره چې د هغې مقابلې کې يې دوی ته د کومې سختې ماتې سزا ور نه کړه، برسېره پر هغه د دې حضراتو ګرد ګناهونه يې معاف کړل، چې هيڅ يو تن له دوی ځنې ګناهګار پاتې نه شو، او هيڅوک حق نه لري چې په هغوی باندې طعن يا څه ملامتي ووايي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ كَفَرُوا

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) مه کېږئ تاسې لکه هغه کسان چې کافران شوي دي.

تفسير: يعنې تاسې لکه دا کافر منافقان هسې لغو او چتې خيالاتو ته پخپلو زړونو کې ځای مه ورکوئ، چې که مونږ پخپلو کورونو کې ناست وای؛ نو نه به وژل کېدلو.

وَقَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ

او ويل به دوی په (حق د) ورونړو خپلو کې.

تفسیر: څرنګه چې منافقان په ظاهره کې مسلمانان شوي وو، نو ځکه يې مسلمانانو ته ورونه ويل، يا دا چې په نسبي ډول دوی د مدينې منورې د انصارو له ورونو ځنې وو، او څنګه يې چې دا خبرې د خير خواهی او همدردۍ په دود کولې، نو ځکه د «اخوان» لفظ سره يې تعبير وکړ شو.

إِذَا ضَرَبُوا فِي الْأَرْضِ أَوْ كَانُوا غُزًّى لَّوْ كَانُوا عِندَنَا مَا مَاتُوا وَمَا قُتِلُوا لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ ۗ

کله به چې سفر ته وتل دوی په ځمکه (په ملك کې) کې، يا به وو دوی غزا کوونکي، که چېرې وای دوی له مونږ سره؛ نو نه به وو مړه شوي دوی، او نه به قتل کړی شوي وو دوی، لپاره د دې چې وګرځوي الله دا (ګمان) حسرت (افسوس، ارمان) په زړونو د دوی کې.

تفسیر: يعنې که دا شهيدان شوي مسلمانان له مونږ سره پخپلو کورونو کې او سېدی نو ولې به وژل کېدل؟ دا وينا د دې له امله ده چې د آورېدونکو مسلمانانو په زړونو کې حسرت او افسوس پيدا شي، مګر مسلمانان داسې ناپوهان نه وو، چې په هسې فريبونو به غوليدل، بلکه له هسې خبرو څخه بالعکس د منافقانو غيرت او اعتبار لاړ.

ځينو مفسرينو چې په ﴿لِيَجْعَلَ اللَّهُ ذَٰلِكَ حَسْرَةً فِي قُلُوبِهِمْ﴾ کې «لام» د عاقبت لپاره اخيستی، نو داسې معنی يې کړېده: «د منافقانو پر ژبه او په زړه باندې ځکه داسې خبرې جاري و ې، چې الله تعالی تل دوی د افسوس او حسرت په اور کې وسوځوي، او په کې پرې يې ږدي»، او د دوی بل حسرت به دا وي چې مسلمانان ولې ځمونږ په شان نه شول، او ځمونږ په خبرو باندې ولې چا غوږ کېښنبود؟ ګواکې په دې تقدير سره د ﴿لِيَجْعَلَ﴾ تعلق د ﴿لَا تَكُونُوا﴾ الآيه ـ سره هم کېدی شي.

وَاللَّهُ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۗ

او الله ژوندي کول (ژوندي پرېښودل) او مړه کول کوي.

تفسیر: يعنې ژوندي کول او مړه کول د الله تعالی کار دی، خورا ډېر کسان په خپل ګرد عمر کې سفرونه کوي، او په جنګونو کې شامليږي، مګر مرګ دوی ته د هغوی په کورونو او د دوی په بسترو کې وررسيږي، مګر بيا هم هم دوی وايي: «سړی په خپل کور کې له هر ډول مصيبتونو او انديښنو ځنې ساتلی وي»، ډېر کسان داسې شته دي، چې عادتًا په خپلو کورونو کې اوسيږي، مګر په پای (آخر) کې داسې يوه وسيله وربرابريږي، چې دوی له خپله کوره وځي، او هم هغلته د باندې مړه يا ووژل شي، د بندګانو په هسې تدبيرونو مرګ بېرته کېدونکی او بچ کېدونکی نه دی.

خالد بن وليد رضي الله عنه د خپل وفات په وخت کې وويل: «زما په بدن کې هسې يوه لوېشت ځای نشته چې د تورو، او غشو له زخمه خالي وي، مګر زه نن لکه يو اوښ غوندې په خپل بستر او کور کې مرم».

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١٥٦﴾

او الله پر هغو (ټولو) شيانو چې تاسې يې کوئ ښه ليدونکی دی.

تفسیر: يعنې الله جل جلاله ته معلوم دي چې منافقان او کافران پر کومه لاره باندې درومي؟ او مسلمانان تر کوم ځای پورې د دوی له تشبه او پيروی ځنې ځانونه ساتي؟ نو هر يوه ته الله تعالی د ده له حاله سره مناسب بدل ورکوي.

وَلَئِن قُتِلۡتُمۡ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ أَوۡ مُتُّمۡ لَمَغۡفِرَةٞ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحۡمَةٌ خَيۡرٞ مِّمَّا يَجۡمَعُونَ ۝١٥٧ وَلَئِن مُّتُّمۡ أَوۡ قُتِلۡتُمۡ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحۡشَرُونَ ۝١٥٨

او قسم د ی خامخا که ووژلی شوئ تاسې په لاره د الله کې یا مړه شوئ تاسې (په لاره د الله کې) نو خامخا مغفرت له جانبه د الله او رحمت (مهرباني د الله) خیر (ډېر ښه) دی له هغو (مالونو) چې دوی یې جمع کوي. او قسم دی که مړه شوئ تاسې یا ووژلی شوئ تاسې نو خامخا به الله ته راجمع کړی شئ تاسې (ټول).

تفسیر: یعني فرض یې کړئ چې که تاسې سفر یا «جهاد» ته ونه وځئ! او في الحال په یو چل ځان له مرګه وساتئ، مګر دا خبره ضروري ده چې کله نه کله به تاسې مرئ!، یا به وژل کیږئ، بیا به په هر حال سره تاسې ټول د الله تعالی په مخ کې حاضریدونکي او ګرد سره جمع کیدونکي یئ، هلته به تاسې و پوهېږئ، چې هغه بختور کسان چې د الله تعالی په لاره کې او په ښو کارونو کې مري یا وژل کیږي، دوی ته د الله تعالی له مغفرت او مهرباني څخه څومره ډېره برخه ور په برخه کیږي؟ چې د هغې په مقابل کې د نیوي ګټې او ګرد جمع کړی دولت او ثروت هیڅ دی.

فَبِمَا رَحۡمَةٖ مِّنَ ٱللَّهِ لِنتَ لَهُمۡۖ وَلَوۡ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ ٱلۡقَلۡبِ لَٱنفَضُّواْ مِنۡ حَوۡلِكَۖ فَٱعۡفُ عَنۡهُمۡ وَٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُمۡ وَشَاوِرۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡرِۖ فَإِذَا عَزَمۡتَ فَتَوَكَّلۡ عَلَى ٱللَّهِۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُتَوَكِّلِينَ ۝١٥٩

نو په سبب د رحمت د الله (چې پر تا شوی دی ای محمده ! تل) نرمي کوې ته دوی ته، او که وې ته (ای محمده !) بد خوی سخت زړی نو خامخا به تار په تار شوي وو (اصحاب) له چاپېره ستا څخه (ای محمده !)، نو عفوه وکړه دوی ته (د دوی له تجاوز نه پر تا) او مغفرت وغواړه (له الله) دوی ته (د تقصیراتو د دوی)، او مشوره وکړه له دوی سره (په کار) امر کې، نو کله دې چې ټینګه اراده وکړه (ای محمده ! د یوه کار کولو ته) نو توکل (اعتماد) وکړه پر الله باندې، بېشکه الله محبت کوي توکل کوونکو سره (چې بریالي کوي یې او د رشد او صلاح لاره ورښیي).

تفسیر: الله تعالی مسلمانانو ته د هغوی په تقصیراتو باندې تنبیه وفرمایله، او د عمومي عفوې د اعلان له اورولو څخه وروسته یې دوی ته نصیحت وکړ، چې بیا د دې ډلې په خبرو باندې چې د لستوڼي ماران دي؛ مه تېروځئ ! په دې آیت کې یې د هغوی د تقصیر د عفوې تکمیل وکړ.

﴿فَبِمَا رَحۡمَةٖ مِّنَ ٱللَّهِ لِنتَ لَهُمۡ﴾ یعني د الله تعالی څومره زیات رحمت پر تاسې او دوی باندې دی، چې تاسې یې دومره خوش اخلاق او خوش خوی وګرځولئ، که کوم بل څوک وي نو الله تعالی خبر دی، چې په دغومره یوه لویه واقعه کې به یې څه سخته رویه غوره کوله؟ او برسېره په دې دا د الله تعالی څومره مهرباني ده، چې تا غوندې شفیق او نرم زړه رسول یې هغوی ته وراستولی دی، فرض یې کړئ که په مزاج کې مو شدت وای، نو دا قوم کله ستاسې په خواوو شا کې ټولېدلی شو، که له دوی څنې کومه غلطي کېدی، او تاسې له دوی سره سختي کولی، نو د شرم او دهشت له امله به ستاسې مخ ته نشوی راتلی، نو له دې امله به دوی له ډېر خیر او سعادت څخه بې برخې پاتې کېدل.

إِن يَنصُرْكُمُ اللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ فَمَن ذَا الَّذِي يَنصُرُكُم مِّن بَعْدِهِ ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٦٠﴾

که مرسته وکړي له تاسې سره الله (لکه چې په بدر کې يې وکړه) نو نشته (هيڅ) غالب پر تاسې باندې، او که مرسته ونه فرمايي له تاسې سره (الله لکه چې په أحد کې يې پرېښودئ) نو څوک دی هغه چې مرسته به وکړي له تاسې سره وروسته له هغه (خذلان د) الله؟(هيڅوک نشته !) او خاص پر الله دې پس توکل (اعتماد) وکړي مؤمنان.

تفسير: پخوا يې رسول صلی الله عليه وسلم ته فرمايلي ووچې «په الله تعالی توکل وکړئ !» دلته دا راښيي، چې د توکل او اعتماد وړ (مستحق) او لائق هم هغه لوی ذات دی چې له ګردو(ټولو) څخه قوي او غالب دی، ګردو (ټولو) مسلمانانو ته ښايي چې د ده پر مرستې (مدد) باندې توکل وکړي، پاک الله وروسته له دې نه له خپل لوري د مسلمانانو د تقصيراتو معافول او پر خپل رسول صلی الله عليه وسلم باندې يې د هغو د معافولو نصيحت هغوی ته فرمايي، چې د هيچا په خبرو باندې مه خطا وځي ! او خالص پر الله تعالی باندې توکل او اعتماد ولرئ ! نو د هغه مرسته (مدد) به در ورسيږي، او هيڅ يو طاقت به پر تاسې باندې نه غالبيږي، لکه چې د «بدر» په غزا کې مو وليد، او که د کوم مصلحت له امله ستاسې مرسته ونه کړي، نو بيا هيڅوک تاسې ته مرسته نشي دررسولی، لکه چې د «احد» په غزا کې تاسې ته تجربه وشوه.

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَغُلَّ ۚ وَمَن يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿١٦١﴾

او نه ښايي هيڅ نبي ته چې څه شی پټ کړي، او هر څوک چې څه شی پټوي نو را به وړي (دا پټوونکی) په هغه سره چې ده پټ کړی وي، په ورځې د قيامت کې، بيا به پوره ورکړی شي هر نفس ته (جزا د) هغه عمل چې کړی وي ده، او پر دوی به ظلم ونه کړی شي، (په تزييد د عذاب، يا تنقيص د ثواب کې).

تفسير: له دې څخه غرض د مسلمانانو پوهول دي، چې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم له عظمت، عصمت، او امانت څخه ځان خبر کړئ، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په نسبت هيڅکله چټي (فضول) او بيهوده خيالات په زړه کې ونه ګرځوئ ! مثلا، داسې ګمان ونه کړئ ! چې له غنيمت څخه به يې څه مال پټ ساتلی وي، العياذ بالله، ښايي دا يې ځکه فرمايلي وي چې هغو غشو ويشتونکو ته چې د غنيمت لپاره يې خپل سنګرونه (مورچې) پرېښودل؛ ګوندې داسې خيال په زړه کې ګرځېدلی وي، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به مونږ ته له غنائمو څخه برخه نه راکوي، يا به ځينې شيان له مونږ څخه پټ ساتي.

تنبيه: د «غلول» اصلي معنی د غنيمت په مال کې خيانت کول دي، خو که د مطلق خيانت په معنی هم راځي، خو که محض د يوه شي په پټولو باندې هم د هغه اطلاق کيږي، لکه چې ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي: «غلّوا مصاحفکم».

أَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللَّهِ كَمَن بَاءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللَّهِ وَمَأْوَاهُ جَهَنَّمُ ۚ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٦٢﴾

آيا نو هغه څوک چې متابعت کوي د رضامندی د الله، په شان د هغه چا دی چې اخته شي په قهر سره له (طرفه د) الله (د الله دغوصې مورد وګرځي؟ بلکه نه دی) او ځای د ده دوزخ دی، او بد ځای د ورتلو دی (دا دوزخ).

تفسیر: یعنې رسول الله مبارک چې په هر حال کې نه یواځې د الله تعالی د مرضی تابع دی، بلکه غواړي چې نور خلق هم د الله تعالی د مرضی تابع وګرځوي، آیا دې د هغو خلقو کار کولی شي چې د الله تعالی د غضب وړ او د دوزخ مستحق وي؟ ممکن نه دی !.

هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۳﴾

دوی (د الله تعالی د رضا تابعان خاوندان د متفاوتو) درجو دي په نزد د الله کې، او الله ښه لیدونکی دی په هغو شیانو (هم) چې دوی (یې) کوي.

تفسیر: یعنې نبي علیه السلام او بل مخلوق له سره نه دي برابر، له طمعې او له نورو سپکو او ذلیلو کارونو سره انبیاء علیهم السلام هیڅ تعلق نه لري، الله تعالی ته ټول معلوم دي، چې څه درجې لري؟ او ټول کارونه ورڅرګند دي، آیا الله تعالی به هسې ټیټ طبیعت لرونکو سړیو ته د نبوت منصب څرنګه ورکوي؟ (العیاذ بالله).

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ

خامخا په تحقیق احسان کړی دی الله پر مؤمنانو باندې کله چې مبعوث کړ (راولیږه الله) په دی (مؤمنانو) کې رسول له نفس (جنس) د دوی نه.

تفسیر: یعنې د هم دوی له جنسه او له قومه یې یو بنیادم رسول ورلیږلی دی، چې له هغه سره کیناستل، خبرې اترې کول په ژبه یې پوهېدل آسان دي، او د هغه له احوالو، اخلاقو، د ژوندانه له سوانحو، امانت، دیانت، طهارت او د الله تعالی څنې له وېرې څخه یې خبر یئ، او کله چې ستاسې د هم دې قوم او قبیلې له یوه سړي څخه معجزه ښکاره شي او تاسې هغه وګورئ نو په یقین راوړلو کې زیات سهولت راځي.

فرض یې کړئ که کوم پېری (جن) یا پرښته (ملک) د رسول په صفت لیږل کېدی، نو د ده د معجزاتو د کتلو په وخت کې هسې خیال ممکن وو: څرنګه چې هغه د بشر له جنسه جلا مخلوق دی، ښایي چې دغه خوارق د ده دملکی او جنّي طبیعت او د نوعي صورت خاصه نتیجه وي، څمونږ عجز له هغه څخه د نبوت دلیل نشي کېدی.

يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۶۴﴾

چې لولي (دغه رسول) پر دوی باندې آیتونه د الله، او پاکوي دوی (په توحید سره له ګناه، کینې، او شرکه) او ښیي دوی ته کتاب (قرآن) او حکمت (نبوي سنت او شرعي احکام) او بېشکه وو دوی (له دې نه) پخوا هرو مرو په ګمراهی ښکاره کې.

تفسیر: هم دا مضمون د البقرې د سورت په (۱۲۹) او (۱۵۱) آیتونو کې تېر شوی دی، خلاصه یې داده چې څلور شیان یې بیا ن کړي دي:

(۱) د آیتونو «تلاوت»: چې د هغو په ظاهري معنی باندې د دې له امله چې د ژبې خاوندان دي، پوهیږي او عمل پرې کوي.

(۲) د نفسونو «تزکیه» (د نفساني ککړو او د شرک او معصیت له ګردو مراتبو څخه د دوی د زړونو پاکول او ښه صیقل کېدل): دا شی د «آیات الله» د عمومي مضامینو له تعمیل او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له صحبت او په آیات الله کې له تدبر څخه باذن الله حاصل شوی وو.

(۳) «تعليم الكتاب» (هغوی ته د کتاب الله مراد ورښودل، مثلا که اصحابو کرامو به يو لفظ د ظاهري مدلول، عمومي تبادر او محاورې له لحاظه تفسيرولو، او د مشکلاتو سره به مخامخ شول، په دې وخت کې به پيغمبر صلی الله عليه وسلم د کتاب الله اصلي مراد بياناوه، او د دوی اشتباه به يې لرې کوله، لکه چې په ﴿الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ بِظُلْمٍ أُولَٰئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُمْ مُهْتَدُونَ﴾ الآية - او نورو ځايونو کې دغه طريقه عملي شوې وه.

(۴) د «حکمت» تعليم، يعنې د قرآن او سنت ښودنه او د هغې وضاحت او بيانول، او د غير واضحو نصوصو تفسير او توضيح کول.

رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله تعالی په اعانت او توفيق دا پاتې قوم د علم او عمل په اعلی مراتبو باندې فائز کړ، چې له سلهاوو پېړيو را په ديخوا په انتهايي جهل او وحشت او ښکاره ګمراهی او ضلالت کې ډوب وو، د رسول الله صلی الله عليه وسلم د څو ورځني تعليم او صحبت په برکت د ده اصحاب رضي الله عنهم أجمعين د ګردې دنيا لارښوونکي او معلمان شول، نو دوی لره ښايي چې د دې لوی نعمت قدر وپيژني، او هيڅکله په هېره سره هم هسې کوم حرکت ته اقدام ونه کړي، چې له هغه څخه د دوی زړه خوږ او متألم شي.

أَوَلَمَّا أَصَابَتْكُمْ مُصِيبَةٌ قَدْ أَصَبْتُمْ مِثْلَيْهَا قُلْتُمْ أَنَّىٰ هَٰذَا

آيا کله چې در ورسېد تاسې ته (په احد کې له کفارو څخه) يو مصيبت چې په تحقيق سره رسولی وو تاسې (کفارو ته په بدر کې) دوه چنده له دې غمه، نو وويل تاسې: له کومه دا (غم راغی مونږ ته؟) يا رسېدلي وئ تاسې په دوه چنده له نصرته (ای مسلمانانو په بدر کې) نو وويل تاسې له کومه دا (غم راغی مونږ ته؟).

تفسير: يعنې د «احد» په غزا کې هغه تکليف او نقصان چې تاسې وګاله، د هغه په نسبت په تعجب سره وايئ چې: مونږ مسلمانان مجاهدين وو، او د الله تعالی په لاره کې د ده له دښمنانو سره د جنګېدلو لپاره وتلي وو، او الله تعالی د پاک رسول الله صلی الله عليه وسلم په مبارکه ژبه مونږ ته د نصرت او مرستې وعده هم راکړې وه، نو بيا دا مصيبت پر مونږ باندې ولې نازل شو؟.

د هسې وينا کولو په وخت داسې فکر په کار دي، چې هومره تکليف تاسې ته رسېدلی دی، د هغه تکليف دوه چنده ستاسې له لاسه کفارو ته هم رسېدلی دی، په «احد» کې تقريبا ستاسې (۷۰) تنه شهيدان شول، او په «بدر» کې د کفارو (۷۰) تنه ووژل شول، او (۷۰) تنه نور کافران داسې بنديان شول چې د هغوی وژل ستاسې په پوره واک (قبضه) کې وو.

بيا په «احد» کې هم لومړی د کفارو زيات له شلو تنو مقتولان شول.

که د لرې مودې له مخې تاسې مغلوبان شوئ! نو په «بدر» کې تاسې کفارو ته سخته ماته وررسولې وه، او په «احد» کې هم کله چې تاسې خپلې پښې ټينګې او په مېړانه وجنګېدئ! نو کفار وتښتېدل، او د جنګ ډګر يې پرېښود، نو په داسې صورت کې انصافا تاسې لره له خپلو تکاليفو څخه شکايت کولو او زيات خپه کېدلو موقع نه ده پاتې.

قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِكُمْ

ووايه (ای محمده! دوی ته) چې دا (مصيبت او تکليف) له جانبه د نفسونو ستاسې دی!

إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٦٥﴾ وَمَا أَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ فَبِإِذْنِ اللَّهِ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٦٦﴾ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ نَافَقُوا ۚ

بېشکه الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (نو قادر دی په نصرت او خذلان هم). او کوم (غم) چې دررسېدلی دی تاسې ته په هغې ورځې کې چې سره یو ځای شوي وو فوځونه پس (هغه) په اذن (حکم) د الله سره (وو)، او لپاره د دې چې معلوم (ښکاره) کړي (الله) مؤمنان، او (بل) لپاره د دې وو چې معلوم (ښکاره) کړي (الله) هغه کسان چې نفاق یې کړی وو.

**تفسیر:** کله چې الله تعالی اراده وفرمایي برئ ورکوي، او کله چې اراده وفرمایي ماتې ور په برخه کوي، مغلوبیت د دې له امله نه دی چې الله تعالی په هغه وخت کې پر بري ورکولو باندې قادر نه وو، بلکه د دې لپاره دی چې ستاسې له کسب او اختیار څخه داسې یو صورت پیدا شوی دی، چې په کلي غلبې ورکولو کې مصلحت نه وو، په هر حال هر څه چې شوي دي د الله تعالی په حکم او مشیئت سره شوي دي، چې د هغه سبب تاسې و ئ، او په هغه کې حکمت دا وو، چې له یوه لوري د هر مخلص مؤمن د ایمان او د اخلاص، او له بل لوري د هر منافق د نفاق درجه ظاهره شي، کامل او ناقص سره جدا، او د مخلص او غیر مخلص په منځ کې هیڅ التباس پاتې نشي، او دا ګرد په علم شهودي سره هم همغسې معلوم کړي، لکه چې په علم غیبي سره ورته معلوم دي.

وَقِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ادْفَعُوا ۖ

او وویلی شي دغو (بېرته تلونکو منافقانو) ته چې راځئ (احد ته) غزا وکړئ (له کفارو سره) په لاره د الله کې یا مدافعه وکړئ ! (د دښمن له نفسونو او مالونو او کورونو خپلو !).

**تفسیر:** د جنګ له شروع کېدلو څخه پخوا کله چې رئیس المنافقین عبد الله بن أُبي غوښتل چې له (۳۰۰) سړیو سره بېرته ستانه شي، نو په دې وخت کې هغو ته وویل شول چې: «د جنګ په عین موقع کې چېرې تښتئ؟ که د اسلام په دعوی کې صادق یئ؟ دالله تعالی په لاره کې جنګ وکړئ ! که د الله تعالی په لاره کې د دین لپاره نه جنګېږئ نو د وطني او قومي حمیت او غیرت یا د خپلو اموالو او اولادونو د حفاظت لپاره خو د دښمن مدافعه وکړئ، ځکه که دښمن برئ ومومند، نو په انتقام اخیستلو کې به د مؤمنانو او منافقانو په منځ کې هیڅ تمیز او تفریق نه کوي، او د نورو مسلمانانو په شان به تاسې ته هم نقصان دررسیږي».

قَالُوا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ ۗ

نو وویل دې (منافقانو) که مونږ پوهیدئ په جنګ نو خامخا به مونږ متابعت کړی وو ستاسې.

**تفسیر:** یعنې جنګ پېښېدل مونږ ته یقیني په نظر نه راځي، او دا خوشې چتې یوه اوازه ده، که مونږ پوهېدو چې په رښتیا سره جنګ پېښېدونکی دی، نو خامخا به مو ستاسې ملګرتیا کوله، یا دا مطلب که کومه منظمه او با قاعده مقابله وای، نو مونږ به له تاسې سره پاتې کېدو، ښه نو دا کومه مقابله ده، چې له یوه جانبه (۳۰۰۰) لښکر، او له بله جانبه یواځې (۱۰۰۰) بې وسلې او بې سامانه مسلمانان وو، دا خو جنګ نه دی، محض خپل ځان په هلاکت کې غورځول دي.

«یا له ﴿لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا﴾ څخه یې داسې ښکارول چې خانه ! که مونږ په جنګي فنونو، اصولو، او ترتیباتو پوهیدئ، نو له تاسې سره به پاتې کېدو، ګواکې په زړه کې یې طعنې ورکولې، چې څمونږ په مشورو باندې تاسې تګ ونه کړ، او د نورو په نظریو باندې تاسې عمل وکړ، نو مونږ ستاسې په نزد د جنګ له اصوله ناپوهان یو، او تاسې پوهان یئ ! نو د

څه لپاره مونږ له خپلو ځانو سره بیایئ؟»، لنډه یې دا چې د دروغو پلمې یې جوړې کړې، او بېرته لاړل، الله تعالی د منافقانو په تکذیب کې وایي:

هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ أَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْإِيمَانِ

دوی کفر ته په دغې ورځې کې (چې دغه خبره یې کوله) ډېر نږدې وو له دوی نه په نسبت سره د ایمان.

**تفسیر:** منافقان په زړه کافران او په خوله مسلمانان وو، او تش په ژبه له مسلمانانو سره یو ځای وو، د «احد» د جنګ په عین موقع کې دوی له نبي علیه السلام او نورو مسلمانانو څخه جدا او بېرته شول، او حیلې او پلمې یې جوړې کړې، د دې دوه کارونو څخه د دوی نفاق څرګند شو، او په ظاهر کې هم دوی د ایمان په نسبت کفر ته ډېر نږدې شوي دي، او پخپل دې فعل سره مسلمانانو ته زیان او کفارو ته تقویه رسوي.

يَقُولُونَ بِأَفْوَاهِهِم مَّا لَيْسَ فِي قُلُوبِهِمْ ۗ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُونَ ﴿١٦٧﴾

وایي دوی (منافقان) په خولو خپلو سره هغه (خبره) چې نشته (پرې تصدیق) په زړونو د دوی کې، او الله ښه پوه دی په هغه څه (هم) چې پټوي یې دوی (په زړونو خپلو کې له حسد او کفره).

**تفسیر:** یعنې په ژبه خو دوی ﴿لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّاتَّبَعْنَاكُمْ﴾ ویل، او هغه شی چې د دوی په زړونو کې دی صاف یې نه وایي، د دوی په زړونو کې دا وو: «ښه دی چې مسلمانان مغلوب او ذلیل شي، او مونږ له ډېرې خوښۍ څخه اتڼونه واچوو».

الَّذِينَ قَالُوا لِإِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوا لَوْ أَطَاعُونَا مَا قُتِلُوا ۗ

هغه (منافقان) چې ویل یې په (حق د) ورونړو خپلو کې حال دا چې دوی (پخپله) ناست وو (له جنګه): که دوی (د احد غازیانو) څمونږ خبرې منلې وې، نو نه به وو وژل شوي.

قُلْ فَادْرَءُوا عَنْ أَنفُسِكُمُ الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٦٨﴾

ووایه (ای محمده !دوی ته) نو لرې کړئ تاسې له ځانونو خپلو څخه مرګ که یئ تاسې صادقان (رښتیني په دې خبره کې چې تاسې سره د مرګ دفعه شته).

**تفسیر:** یعنې که د کور په کیناستلو سره ځانونه ژغورل (ساتل) کیږي، نو ګورو به چې د مرګ مخه به تاسې څرنګه نیسئ، چې تاسې کورو ته ننوځئ، که سره له دې چې په کورونو کې پاتې شوي یئ، بیا هم د مرګي له منګولو څنې ځانونه نشئ ژغورلئ (بچ کولئ) نو بیا ولې د توریالیو غوندې د جنګ په میدان کې د عزت مرګ نه غوره کوئ.

وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا ۚ بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ﴿١٦٩﴾ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُوا بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿١٧٠﴾ يَسْتَبْشِرُونَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ وَفَضْلٍ وَأَنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٧١﴾

او له سره ګمان مه کوئ (ای محمده یا ای سامعه !) پر هغو کسانو چې وژل شوي دي دوی په لاره د الله (جهاد) کې د مړو (مړه نه دي)، بلکه ژوندي دي په نزد درب خپل رزق ورته ورکولی

شي (له جنتي مأکولاتو او مشروباتو څخه). په دې حال کې چې خوشاله دي دوی په هغه شي باندې چې ورکړي دي دوی ته الله له فضله خپله، او خوشالیږي دوی (په راتلو د) هغو کسانو باندې چې لا نه دي رسیدلي دوی تر هغو پورې وروسته د دوی نه، په دې شان سره چې نه به وي (هیڅ قسم) وېره په دوی باندې، او نه به دوی (هیچېرې) غمجن کیږي (د ثواب په نقصان سره). خوشالیږي دوی په نعمت باندې له (جانبه د) الله، او (دده په) فضل باندې، او (په دې چې) بېشکه الله تعالی نه ضایع کوي اجر د مؤمنانو (بلکه پوره یې ورکوي).

**تفسیر:** یعنې د کور ناستي د مرګ مخه نشي نیوی، هو ! سړی له هغه مرګه بې برخې کوي، چې د مرګ په ځای ور ته ابدي ژوندون ویلی شي، شهیدانو ته وروسته له شهادته یو مخصوص ډول ژوند ور په برخه کیږي، چې نورو مړو ته هغسې ژوند نه ورکول کیږي، دوی ته د الله تعالی ممتاز قرب حاصلیږي، او په ډېرو لویو درجاتو او مقاماتو باندې فائز کیږي، د جنت رزق دوی ته په ازادۍ سره وررسیږي.

څرنګه چې مونږ په یوه طیاره کې کینو، او په ډېر لږ وخت کې هر چېرې چې مو زړه وغواړي؛ الوځو او درومو، د شهیدانو ارواح هم د شنو مرغانو په ججورو کې د جنت ننداري کوي، د دې شنو مرغانو کیفیت او لویوالی الله تعالی ته معلوم دی، د هغه ځای شیونه څمونږ د خیال په احاطه کې کله راتلی شي، په دې وخت کې شهیدان به بېشانه خوشحال وي، بیا نه یواځې دا چې دوی پخپلو احوالو باندې دومره خوښ او خوشحال دي، بلکه د هغو مسلمانانو غم هم ورسره وي چې له دوی څخه وروسته پاتې دي، او په في سبیل الله «جهاد» او نورو خیریه وو امورو کې مشغول دي، هغوی هم که څمونږ په شان د الله تعالی په لاره کې ووژل شي، یا اقلا د ایمان له دولت سره ومري، د دوی له ایماني رتبې او حیثیت سره سم همداسې خوندور او بې وېرې ژوندون به ور په برخه کیږي.

په ځینو روایاتو کې راغلي دي چې د «احد» یا د «بئر معونه» شهیدان جنت ته رسیدلي دي، له الله تعالی څخه یې تمنا کړې: «کاشکې څمونږ د دې عیش او تنعم خبر څمونږ نورو ورونو ته څوک ورسوي، چې هغوی د دې خوندور ژوند په لوري ژر راوځغلي، او ځانونه له مونږ سره ونښلوي، او له «جهاد» څخه خپل ځانونه هیڅ ونه ساتي»، حق تعالی وفرمایل: چې زه یې ور رسوم، نو یې دا آیت نازل او دوی یې هم مطلع کړل، چې مونږ ستاسو له امیدونو سره سم دا خبر دنیا ته وررساوه، نو هغه شهیدان له دې څخه لا خوشاله شول.

ٱلَّذِينَ ٱسْتَجَابُوا۟ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ مِنۢ بَعْدِ مَآ أَصَابَهُمُ ٱلْقَرْحُ ۚ لِلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ مِنْهُمْ وَٱتَّقَوْا۟ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿۱۷۲﴾ ٱلَّذِينَ قَالَ لَهُمُ ٱلنَّاسُ إِنَّ ٱلنَّاسَ قَدْ جَمَعُوا۟ لَكُمْ فَٱخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ إِيمَـٰنًا وَقَالُوا۟ حَسْبُنَا ٱللَّهُ وَنِعْمَ ٱلْوَكِيلُ ﴿۱۷۳﴾

هغه کسان چې حکم یې منلی دی د الله او (حکم یې منلی دی د) رسول (د الله) پس له هغه چې رسېدلی وو دوی ته زخم (تکلیف مشقت) شته لپاره د هغو کسانو چې نیکي یې کړې له دوی نه (د الله د حکم په منلو سره) او پرهېزګاري یې کړې ده؛ اجر ډېر لوی (د جنت). (دوی) هغه کسان دي چې وویل دوی ته (ځینو) خلقو چې : بېشکه (دمکې) خلق په تحقیق سره راټول شوي دي ستاسې (د جنګ) لپاره، نو وویرېږئ ! له دوی نه (یا) په تحقیق سره ټول کړی یې دی (سامان د مقابلې) ستاسې لپاره؛ نو وویرېږئ له دوی نه، پس (دغو ویرولو) لا زیات کړ ایمان د دوی (یقین زړورتوب)، او وویل دوی: بس دی مونږ ته الله، او ښومره ښه وکیل (کار جوړوونکی) دی (الله).

تفسير: کله چې ابو سفيان له «احد» څخه د مکې معظمې په لوري بېرته روان شو، نو په لاره کې دا خيال ورته پيدا شو، چې له مونږ څخه لويه غلطي وشوه، چې مجروح او مغلوب مسلمانان مو هم همغسې پرېښودل، او بېرته ترې راغلو، نو يې جرګه سره وکړه، او دا يې سره غوټه کړه چې راځئ ! بېرته مدينې ته لاړ شو، او د هغو قصه بيخي پای ته ورسوو، کله چې دا خبر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورسېد، نو اعلان يې وکړ، «هغه غازيان چې پرون له مونږه سره په غزا کې شريکان وو، نن دې بيا د دښمن د تعقيب لپاره تيار شي !».

مجاهدين سره له دې چې ستړي او ستومان او له زخمونو ځنې يې وينې بهېدې، د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې دعوت ځواب يې په (لبيک) سره ووايه، رسول الله مبارک د مجاهدينو د لښکر سره تر يو ځای پورې چې (حمراء الأسد) نومېږي، او له مدينې منورې څخه تقريبا اته ميله لرې دی؛ لاړل، د ابو سفيان په زړه کې د دې خبرې له اورېدلو څخه چې مسلمانان ځمونږ د تعقيب لپاره را درومي، سخته وېره ولوېده، او د خپلې دويم ځلي حملې اراده يې فسخ کړه، او په ډېر تلوار د مکې معظمې په لوري په منډه شول.

د عبد القيس يوه تجارتي قافله د مدينې منورې په لوري راتله، ابو سفيان د دې قافلې سړيو ته څه رشوت ورکړ، چې: «تاسې په مدينې منورې کې داسې اخبار نشر کړئ، چې د هغو له اورېدلو څخه مسلمانان له مونږ مکيانو ځنې ووېرېږي، کله چې هغوی په مدينې منورې کې دا خبر مشهور او خور کړ، چې «مکيانو بيا يو لوی لښکر او ډېر سامان د مسلمانانو د بېخ ويستلو په نيت سره ټول کړی دی»، ددې د اورېدلو په اثر مسلمانانو د خوف او وېرې په ځای وويل: ﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾ د ټولې دنيا په مقابل کې مونږ لره يواځې الله تعالى کافي دی ! نو په دې مناسبت دا آيت نازل شو.

﴿فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ ﴾ ١٧٤

نو بېرته راوګرځېدل (دا مؤمنان) په نعمت سره له (جانبه د) الله او (په) فضل (احسان او رحمت سره له الله نه) چې ونه رسېده دوی ته هيڅ بدي (نه زخم نه قتل نه هزيمت) او تابعان شول دوی د رضامندۍ د الله، او الله څښتن (مالک) د فضل (احسان، رحمت) ډېر لوی دی.

تفسير: يعنې د الله تعالى فضل ته وګورئ ! چې نه جنګ او جګړه ورپېښه شوه، نه کوم اغزی د دوی په پښو کې مات شو، او وېړيا يې ثواب وګاټه، او له تجارت څنې يې ګټې واخيستلې، او پر دښمنانو باندې يې خپله وېره کېښوده، او خپل شان او شوکت يې ور څرګند کړه، او د الله تعالى له خوښۍ سره بېرته صحيح سالم او (روغ، رمټ) خپلو کورونو ته وګرځېدل

تنبيه: د «حمراء الأسد» په غزا کې له يوې تجارتي قافلې سره د مالونو بيع او شراء شوې وه، او مسلمانانو له هغه تجارت څخه ډېره ګټه اخيستې وه، اغلبا له «فضل» څخه همدغه مالي نفع مراد ده.

﴿اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ ۠ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَخَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴾ ١٧٥

بېشکه دا سړی شيطان دی چې وېروي تاسې (ای مؤمنانو) له دوستانو خپلو (چې کفار دي) نو مه وېرېږئ تاسې له کفارو ! او ووېرېږئ زما (د أحکامو له ترک) څخه، که يئ تاسې مؤمنان (په حق سره).

تفسير: په ﴿يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ﴾ کې اول مفعول محذوف دی، «أي يخوفکم أولياءه الکفار»، يعنې څوک چې له هغه لوري څخه راغی او وېروونکي خبرې خپروي هغه شيطان دی، يا د شيطان په اغواء سره داسې کوي، چې له دې نه د هغه

مقصد د ادی چې د خپلو لويو ملګرو او د نورو خپلوانو خوف او وېره پر تاسې باندې واچوي، نو که تاسې مؤمنان يئ، نو له دې شيطانانو څخې بيخي مه ويرېږئ ! او يوائې له ما څخې وويرېږئ !.

وَلَا يَحْزُنكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ ۚ إِنَّهُمْ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا ۗ يُرِيدُ اللَّهُ أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْآخِرَةِ ۖ
وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٦﴾

او غمجن دې نه کړي تا هغه کسان چې منډې وهي (جلتي کوي) دوی په جانب د کفر (د منافقانو او مرتدانو)، بېشکه دوی به له سره هيڅ ضرر ونه رسوي الله ته د هيڅ شي (بلکه ضرر رسوي ځانونو خپلو ته)، اراده لري الله د دې چې مقرر نه کړي د دوی لپاره هيڅ برخه (نعمت) په آخرت کې او (مقرر) دی دوی لره عذاب ډېر لوی.

إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٧﴾

بېشکه هغو کسانو چې اخيستلی يې دی (بدل کړی يې دی) کفر په ايمان سره؛ له سره به ضرر ونه رسوي دوی الله ته هيڅ شی، او (مقرر دی) دوی ته عذاب دردناک (د دوزخ).

تفسير: دغه تکرار د تاکيد لپاره دی، او د منافقانو او مرتدانو له تخصيص څخه وروسته ټولو کفارو ته شامل دی، يعنې هغه کسان چې فطري ايمان يې بدل او کفر يې اختيار کړ، اعم له دې نه چې يهودي وي که نصراني وي، مشرک وي که منافق، يا بل څوک، او دوی ټول سره يو ځای هم شي، خو بيا هم دوی د الله تعالی هيڅ شی نشي خرابولی، هو ! دوی په خپل لاس خپله پښه په تبر وهي، چې په نتيجه کې به د دردناک عذاب مورد ګرځي.

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ ۚ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ
مُّهِينٌ ﴿١٧٨﴾

او ګمان دې نه کوي هغه کسان چې کافران شوي دي؛ چې بېشکه دا چې مهلت ورکوو مونږ دوی ته خير (غوره) دی لپاره د ځانونو د دوی، (داسې نه ده بلکه) بېشکه هم دا خبره ده چې تل مهلت ورکوو مونږ دوی ته لپاره د دې چې زياته کړي د دوی ګناه، او (مقرر) دی دوی ته عذاب سپکوونکی.

تفسير: يعنې امکان لري چې کافران خپل اوږد عمر، خوښي، خوشالي، دولت، ثروت، عزت، او د نورو شيانو زيادت ته وګوري، هسې اټکل وکړي: «که مونږ په رښتيا سره مغضوب او مطرود وای، نو دومره پراخي او مهلت ولې راکاوه کيږي؟ او دهسې ښه ژوندون او ارام په حالت کې د څه لپاره شپې او ورځې تېروو؟» نو واضحه دې وي، چې دغه مهلت ورکول د دوی په حق کې کومه ښه خبره نه ده، او د مهلت ورکولو نتيجه به هم داسې وي، چې دوی به بيخي په ګناهونو کې ډوبيږي، او د کفر په حالت کې به مري دوی هسې فکر کوي چې مونږ په خورا لوی عزت کې يو، حال دا چې ډېر ذليل او خورا سپکوونکی عذاب د دوی لپاره تيار دی، نو اوس قضاوت او ښه فکر په کې وکړئ ! چې دغه مهلت د هسې کسانو په حق کې ښه دی که ؟ (نعوذ بالله من شرور أنفسنا).

مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ
لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ۖ

نه دی الله چې پرېږدي مؤمنان په هغه حال (د اختلاط) چې يئ تاسې (ای خلقو !) پر هغه، تر څو چې جلا کړي (الله) ناپاکه له پاکه څخې، او نه دی الله چې خبر کاندي تاسې په غيب باندې (چې

د منافقانو تميز دی له مخلصانو څخه)، وليکن الله غوره کوي له رسولانو خپلو څخه چې اراده وفرمايي (د غوره کولو يې).

تفسير: يعنې همغسې چې د دنيا خوشالي ا و مهلت د کفارو په حق کې د مقبوليت دليل نه دی، همداسې که مخلصو مسلمانانو ته مصيبتونه ورپېښ شي، نو هغه هم د دې خبرې دليل نشي کېدی، چې هغوی د الله تعالی په نزد مغضوب دي.

خبره داده چې الله تعالی مسلمانان هسې بې خبره نه پرېږدي، چې تر اوسه پاتې دي، يعنې ډېرو کفارو به د نفاق له لارې د اسلام کلمه ويله، او د تېر ايستلو لپاره به له دوی سره ګډېدل، چې د دوی د ظاهري احوالو په لحاظ د منافق د لفظ ويل ورته مشکل وو، نو ځکه ضروري ده چې الله تعالی داسې واقعات او حالات وړاندې کړي چې د هغو په وسيله پاک، ناپاک، اومه، او پاخه په ښکاره ډول سره جلا شي.

بېشکه چې الله تعالی ته آسان وو، چې ګرد مسلمانان بې له امتحانه د منافقانو له نومونو او کارونو څخه خبر کړي، ليکن د هغه حکمت او مصلحت د دې مقتضي نه دی، چې ټول خلق له دې غيبي امورو ځنې خبر کړي، هو ! دهسې کارونو لپاره خپل رسولان انتخابوي، او د څومره غيبي اطلاعاتو او يقيني اخبارونو د اطلاع ورکولو اراده چې وفرمايي هم هغومره ور کوي.

خلاصه يې داسې شوه چې «عامو خلقو ته بې واسطه د کومې پټې خبرې يقيني اطلاع نه ورکوله کيږي، او انبياء عليهم السلام ته هومره اطلاع ور کوي، چې د الله تعالی اراده وي».

فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ ۚ وَإِن تُؤْمِنُوا۟ وَتَتَّقُوا۟ فَلَكُمْ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٩﴾

نو ايمان ولرئ تاسې (ای مؤمنانو !) پر الله او پر رسولانو د الله، او که په ايمان قائم پاتې اوسئ ! او پرهېزګاري وکړئ (له بدو کارونو) پس دی تاسې ته اجر ډېر لوی (په جنت کې).

وَلَا يَحْسَبَنَّ ٱلَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَآ ءَاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ مِن فَضْلِهِۦ هُوَ خَيْرًا لَّهُم ۖ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۖ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا۟ بِهِۦ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ

او ګمان دې نه کوي له سره هغه کسان چې بخيلي کوي دوی په هغه شي چې ورکړی دی دوی ته الله له فضله خپله، چې دا بخل خير دی (غوره دی) دوی ته، بلکه دا (بخل ډېر بد) شر دی دوی ته، ژر به په غاړه کې ورته اميل کړ شي هغه چې بخيلي کړې ده دوی په هغه شي کې؛ په ورځې د قيامت.

تفسير: يهودان، او منافقان هم هغسې چې د جهاد په موقع کې تښتي، د مال د صرفولو په وخت هم ځان بچ کوي، خو څرنګه چې له «جهاد» ځنې تښتېدل او د څو ورځو مهلت حاصلول د دوی په حق کې چندان ښه نه دي، هم دا راز د بخل او شومتيا له امله ډېر مال غونډول هم دوی ته هيڅ ګټه نشي ورسولی.

که په دنيا کې کوم مصيبت دوی ته ورپېښ شو، نو د قيامت په ورځ کې به يقينا دا ټول شوی مال د عذاب په صورت د دوی په غاړه کې طوق (غاړکی) غوندې ورلوېږي، په دې ضمن کې يې مسلمانانو ته هم يادونه وکړه چې د «زکات» په ورکولو او د نورو ضروري مصارفو په صرفولو کې هيڅکله نه ښايي چې ځانونه وسپموي (بچ کړي)، که نه هر هغه چا چې په بخل او حرص او نورو سپکو خصلتونو کې د يهودانو منافقانو دستور اختياروي، هغه ته به د

هغه د درجې سره سم سزا ورکوله کیږي، دوی دې منتظر اوسي لکه چې له صحیحه وو احادیثو څخه ثابته ده، «چې د زکات د مانعینو مال به د سخت زهر لرونکي مار په صورت متمثل کیږي (جوړیږي) او د دوی تر غاړې به چاپیریږي»، نعوذ بالله منه !.

وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

او خاص الله لره دی میراث د آسمانونو او د ځمکې (د دغو دواړو د اهل فنا څخه به وروسته هر څه هم هغه حقیقي وارث او مالک ته پاتې کیږي).

تفسیر: یعنې آخر تاسې مرئ، او ستاسې ګرد مال د هغه په لاس کې پاتې کیږي.

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۸۰﴾

او الله پر هغو (کارونو هم) چې کوئ (یې) تاسې ښه خبردار دی (نو د ټولو جزا به درکړي).

لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَآءُ

خامخا په تحقیق اوریدلې ده الله خبره د هغو کسانو چې ویلې یې وو: بېشکه الله فقیر دی، او مونږ غنیان یو (چې له مونږه قرض غواړي).

تفسیر: یعنې یوازې هم دومره نه ده چې یهودان د ډېر بخل له لاسه د پیسو په صرفولو باندې نه پوهیږي، بلکه هر کله چې د الله تعالی په لاره کې د صرفولو حکم اوري، نو ټوکې کوي او د حق تعالی په جناب کې سپین سترګي کوي، او له چټي خبرو څخه نه شرمیږي، لکه څه وخت چې د ﴿مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا﴾ آیت نازل شو، ویې ویل چې: الله تعالی له مونږ څخه قرض غواړي، نو الله تعالی فقیر او محتاج او مونږ غنیان یو، حال دا چې یو ناپوه او جاهل هم په دې خبره باندې پوهېدی شي، چې د (انفاق في وجوه الخیر) تعبیر په قرض سره د انتهایي رحمت او شفقت اظهار دی، او دا ښکاره خبره ده چې الله تعالی مونږ ته امر کوي چې د هغه له راکړي مال څخه د خپلو مصالحو، دیني، او دنیوي ګټو لپاره مصرف وکړو، او د ده لوی ذات ته څمونږ له دې صرفولو هیڅ یوه فائده نه رسیږي، دا د هغه لوی کرم او احسان دی، چې د هغو د صرفولو ډېر ښه معاوضه ورکول یې هم پخپله ذمه نیولي دي، او هغه یې د قرض (پور) په لفظ سره اداء کړې ده، او دا لزوم یې لا زیات مؤکد کړی دی، مګر یهودان د خپل باطني خبث په سبب د الله تعالی دې احسان منلو په ځای په داسې الفاظو پورې خاندي، نو ځکه الله تعالی فرمایي چې: ما ستاسې دا ګردې خبر اوریدلې دي، او د هغو په نسبت هره کاروایي چې لازمه وي کوم یې، تاسې منتظر اوسئ !.

سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾

ژر به مونږ لیکلي و ساتو هغه خبرې چې دوی ویلې دي او (لیکلي به وساتو) وژل (د نیکونو) د دوی انبیاوو لره په ناحقه سره (په خپل اعتقاد سره هم)، او وبه وایو مونږ (دوی ته چې) وڅکئ عذاب د اور سوځوونکي !.

تفسیر: یعنې له عامې ضابطې سره سم ستاسې دا ملعون او ناپاکه اقوال د سیئاتو په هم هغه دفتر کې لیکو؛ چې هلته ستاسې د قوم ملعون او ناپاکه افعال هم درج دي، لکه د معصومو انبیاوو علیهم السلام په نا حقه سره وینې تویول، ځکه همغسې چې دا نا مناسبه جمله ستاسې د الله تعالی د پېژندلو یوه نمونه ده، هغه نامناسبه کار هم ستاسې د انبیاوو له تعظیم

څخه يوه نمونه ده، کله چې ستاسې دا پوره عملنامه در وړاندې کړه شي، نو هلته به وويل شي: چې اوس د خپلو بديو او شرارتونو خوند وڅکئ ! او همغسې چې تاسې په طعن او تمسخر سره د اولياء الله «رحمهم الله» زړونه سوځول، نو اوس تاسې هم د الله تعالی د عذاب په بټۍ کې وسوځئ !.

ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿١٨٢﴾

دا (عذاب) په سبب د هغه دی چې پخوا ليږلي دي (کړي دي) لاسونو ستاسې او بېشکه چې الله نه دی ظلم کوونکی په بندګانو.

تفسير: يعني هر څه چې يې ګټلي وو؛ هم هغه يې په مخه ورغلل، د الله تعالی له جانبه د يوې ذرې په اندازه هم ظلم نه کيږي، لکه د «النساء» په (۴۰) آيت (۶) رکوع کې داسې لولو: ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ﴾.

اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ؕ

هغه کسان چې وايي: بېشکه الله پيغام (وصيت) کړی دی مونږ ته چې ايمان به نه راوړو مونږ په هيڅ رسول تر هغه پورې چې راوړي مونږ ته (هسې) قرباني چې يې وخوري اور.

تفسير: له ځينو رسولانو څخه داسې معجزې ظاهرې شوي دي، چې قرباني يا بل کوم شی به يې د الله تعالی په نامه نذر کاوه، نو له آسمانه به اور راته، او هغه به يې خوړ، او دا به د قبول علامه وه، اوس يهودان بهانه کوي چې مونږ ته داسې حکم شوی دی، چې له هر چا څخه چې دا معجزه ونه وينئ ! په هغه باندې يقين مه کوئ ! او دا محض د دروغو بهانې دي، ځکه چې دا راز حکمونه هيڅېرې د هغو په کتابونو کې نه وو، او نه نن ورځ په کې شته، او نه دټولو پيغمبرانو په نسبت دا ادعا ثابته کېدی شي، چې هغوی ته هسې کومه معجزه ورکړی شوې وه، هر رسول عليه السلام ته الله تعالی د هغه د وخت او زمان سره سم مناسبې معجزې ورکړي دي، او دا لازم نه دي چې هر نبي عليه السلام ته دې هم هغه يوه معجزه ورکړي، چې د هغه له ورښودلو څخه د هغه صداقت ثابت شي.

قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٨٣﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته چې) په تحقيق راغلي وو تاسې ته (ډېر) رسولان پخوا له ما په ښکاره وو معجزو او په هغه شي سره چې ويلي دي تاسې (چې قرباني ده بيا) نو ولې ووژل (نيکونو) ستاسې هغوی که يئ تاسې صادقان (چې هم هغه رسول به منئ چې قرباني يي په اور کې وسوځوي).

تفسير: يعني که په رښتيا سره پخپلې دې دعوی کې تاسې رښتين يئ؟ او پر دې خاصې معجزې باندې ستاسې ايمان راوړل موقوف دي، نو تاسې پخوا له دې د هسې انبياوو عليهم السلام په وژلو باندې ولې جرأت وکړ، چې د خپل صداقت لپاره له نورو ښکاره وو معجزاتو سره دا معجزه يې هم درښوولې وه، ستاسې د اسلافو دا فعل چې تاسې هم پر هغه باندې راضي يئ، او تر نن ورځې پورې پرې خوښي کوئ، آيا د دې خبرې دليل نه دی چې دا ټولې ستاسې پلمې (بهانې) حيلې، فساد او سرزوري ده چې وايئ: هر رسول عليه السلام تر څو همدا خاصه معجزه را ونه ښيي؛ مونږ به يې نه منو.

فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿١٨٤﴾

پس که نسبت د دروغو وکړي دوی تاته (ای محمده ! نو مه خپه کيږه ! ځکه) پس په تحقيق

نسبت د دروغو کړی شوی وو ډېرو رسولانو ته پخوا له تا، چې راغلي وو دوی په ښکاره وو معجزو او په صحیفو (د شرعي احکامو) او په کتاب روښان (بیانوونکی د حلال او حرام).

تفسیر: تاسې ته تسلي او ډاډ درکولی شي، چې د دې ملعونانو له دې کړو بحثونو او سر زوریو څنې مه خپه کېږئ! او مه د نورو مکذبینو څه پروا کوئ! له تاسې څنې پخوا نور داسې رسولان هم دروغجن بلل شوي دي، چې معجزې او وړوکې صحیفې او لوی کتابونه یې له ځانه سره راوړي وو، د صادقو انبیاوو علیهم السلام تکذیب د معاندینو پخوانۍ عادت دی، او تاسې ته ای محمده! «صلی الله علیه وسلم» کومه نوې خبره نه ده دروړاندې شوې.

كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ۗ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۖ

هر یو نفس څکونکی د مرګ دی، او بېشکه همدا خبره ده چې پوره به درکړی شي تاسې ته اجرونه ستاسي په ورځ د قیامت کې.

تفسیر: یعنې د مرګې خوند به هر څوک څکي، وروسته له هغه به په قیامت کې هر مصدق او مکذب (ټول نیکانو او بدانو) ته د هغه دعمل پوره بدل ورکول کیږي، له کامل او پوره څخه ممکن دا مطلب وي چې د هغه لږ څه بدل به د قیامت څخه د مخه مثلا په دنیا یا په قبر کې به هم ورته رسیږي.

فَمَن زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ۗ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ﴿١٨٥﴾

نو هر څوک چې لرې کړی شو له اوره (د دوزخ) او داخل کړی شو جنت ته، نو په تحقیق مراد یې ومووند (بریالی شو)، او نه دی ژوندون لږ خسیس مګر پنګه د غولېدلو، (چې نفعه یې لږه او فنا یې ژر ده).

تفسیر: یعنې د دنیا دا مؤقتي بهار (سمسور) ډول او سینګار ډېر تېر ایستونکي شیان دي، چې په هغو باندې ډېر ناپوهان تېروځي، او بیخي په دنیوي امورو کې مشغول او له اخروي چارو څنې غافلیږي، حال دا چې د هر انسان اصلي برۍ په دې کې دی چې پخپل دنیوي ژوندانه کې د خپل آخرت لپاره ګټې او هسې عملونه وکړي، چې د الله تعالی د عذاب څنې سړی وژغوري (وساتي)، او جنت ته یې ورسوي.

تنبیه: په دې آیت کې د هغو څینو متصوفینو تردید هم وشو، چې دوی هسې ادعا کوله «مونږ نه جنت غواړو، او نه له دوزخه ویرېږو» معلومه شوه چې له دوزخ څنې ځان ساتل او جنت ته ننوتل اصلي کامیابي او اساسي بری دی، او هیڅ یوه ډېره اعلی کامیابي د جنت له هستوګنې څنې د باندې د هیچا په برخه نشي کېدی، په حدیث کې راغلي دي: «وحولها نُدَنْدِن». او د الله تعالی د لیدلو نعمت هم په جنت کې حاصلیږي.

الله تعالی دې له خپله فضله او کرمه، مونږ ته هم دا بری او رحمت را په برخه کړي! آمین.

لَتُبْلَوُنَّ فِي أَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا أَذًى كَثِيرًا ۚ وَإِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ ذَٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴿١٨٦﴾

قسم دی چې خامخا وبه ازمویل شئ تاسې خامخا په مالونو خپلو (په زکات) او (په) ځانونو خپلو (په جهاد) او خامخا به واورئ تاسې بالضرور له هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب

له تاسې څخه پخوا، او له هغو کسانو چې شریکان نیسي (په الله پورې)؛ ضرر (بد ویل) ډېر، او که صبر و کړئ (په طاعت او مصیبت او له معصیت) او پرهېزګاري وکړئ تاسې (له بدو کارونو) نو بېشکه دا (صبر او تقوی) د همت له کارونو څخې دي.

تفسیر: دا خطاب مسلمانانو ته دی چې وروسته له دې به هم په ځان او مال ستاسې ازموینه کیږي !، او هر راز ځان جارولو (قربانولو) ته به اړ کیږي ! وژل کېدل، زخمي کېدل، د قید او بند تکلیفونه پر ځان ګالل، ناروغېدل، د مالونو زیانیدل، له خپلو خپلوانو څخې جلا کېدل، او همدا راز د نورو مصیبتونو ګالل به درپېښیږي، او هم به د کتابیانو او د مشرکانو له ژبې ډېرې زړه دردوونکې خبرې آورئ !، چې د دغو ګردو علاج په صبر او تقوی سره کیږي، که تاسې په صبر او استقلال او پرهېزګارۍ سره د دغو سختیو مقابله وکړئ؛ نو دا به د ډېر همت او د اولوالعزمی کار وي، چې د هغه تاکید حق تعالی فرمایلی دی.

وَإِذْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ فَنَبَذُوهُ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ ﴿١٨٧﴾

او (یاد کړه) هغه وخت چې واخیست الله عهد محکم له هغو کسانو څخې چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب، چې خامخا به بیانوئ تاسې دا (کتاب) خلقو ته، او نه به یې پټوئ تاسې، نو وغورځاوه دوی دا (کتاب) وروسته له شاوو خپلو، او وایې خیست په (عوض د) دې (کتاب) قیمت لږ، نو بد اخیستل د دوی (دغه اخیستل) دي (یا نو څومره بد دی هغه شی چې دوی یې اخلي).

تفسیر: یعني د اهل الکتاب له علماوو څخې عهد اخیستی شوی وو، هغه احکام او بشارتونه چې په کتاب الله کې دي؛ ښایي هغه په ښه ډول نورو خلقو ته وروښیئ ! او هیڅ یوه خبره مه ترې پټوئ ! او مه یې معناګانې بدلوئ ! مګر دوی هیڅ څمونږ د دې امرونو پروا ونه کړه، او د لږې ګټې لامله یې هغه ګرد عهدونه او پیمانونه مات او شرعي حکمونه یې بدل، او د الله تعالی په آیتونو کې یې لفظي او معنوي تحریفات وکړل، د هغه شي ښکاره کول چې ډېر زیات ضروري وو، یعني د فخر الأولین خاتم المرسلین صلی الله علیه وسلم بشارت یې بیخي پټ کړ.

دلته یې ضمنا څمونږ اسلامي علماوو ته هم تنبیه وفرمایله، چې که تاسې د دنیا په مینه کې اخته شوي یې هسې مه کوئ ! (بلکه په هر وخت ، هر ځای او د هر چا په مقابل کې امر بالمعروف او نهي عن المنکر کوئ ! او هیڅکله او هیچېرې شرعي احکام له خلقو څخې مه پټوئ ! څکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هم فرمایلي دي: «هر چا چې پټ کړ علم له اهل د علم څخه؛ قیضه به شي په قیضه د اور سره».

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَفْرَحُونَ بِمَا أَتَوا وَّيُحِبُّونَ أَنْ يُحْمَدُوا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٨٨﴾

له سره مه کوه ګومان (ای محمده !) په هغو کسانو چې خوشالیږي په هغه کار چې کړی دی دوی (د خلقو له بې لارې کولو څخه) او مینه کوي دوی په دې؛ چې وستایل شي دوی په هغه کار چې نه وي کړی (له تمسکه په حق، او دوی ګمراهان دي)، پس له سره مه ګڼه ته دوی خلاصیدونکي له عذاب (بلکه په دوزخ کې دي)، او مقرر دی دوی لره عذاب درد رسوونکی.

تفسیر: یهودانو غلطې مسئلې ښوولې، رشوتونه (بډې) يې خوړلې، د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم صفتونه او بشارتونه یې عمداً پټول، او بیا به خوښ وو چې مونږ ښه کار کړی دی، او هیڅوک ځمونږ هسې چالاکی نشي نیولی، او امیدوار وو چې خلق هم ځمونږ تعریفونه (ستاینې) وکړي، او ووايي چې: لوی لوی عالمان، دیندار او حق خوښوونکي دي.

د بل لوري د منافقانو حال هم د دوی له احوالو سره مشابه (ورته) وو، کله چې د «جهاد» موقع راتله؛ دوی پخپلو کورونو کې پټېدل، او پخپل دې پټ کښېناستلو باندې هم خوښېدل، او یو له بله سره به یې ویل: «وګورئ چې مونږ په ښه چالاکی سره خپل ځانونه وژغورل (بچ کړل)».

تنبیه: اګر که په دې آیت کې د یهودانو او منافقانو یادونه ده، مګر ضمنا مسلمانانو ته هم دا مقصد اوراوه کیږي چې، د خرابو کارونو په کولو باندې مه خوښیږئ ! او د ښو کارونو په کولو سره مه مغروریږئ ! او کوم کار چې ښه نه وي، د هغه په نسبت د تعریف هیله مه لرئ ! بلکه د هغه له کولو څخه وروسته د هغه د مداحي (ستایلو) هوس مه کوئ !.

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۱۸۹﴾

او خاص الله لره دی سلطنت د آسمانونو او ځمکې (سره له آسمانونو او ځمکې ملکًا وخلقاً وعَبیداً)، او الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (نو مسلمانانو ته ثواب، او کافرانو ته عذاب ورکوي).

اِنَّ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّیْلِ وَالنَّهَارِ لَاٰیٰتٍ لِّاُولِی الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۰﴾

بېشکه په پیدا کولو د آسمانونو او ځمکې کې (سره له هغو شیانو چې په دې دواړو کې دي) او په اختلاف د شپې او ورځې کې (چې تل اوږدیږي، لنډیږي، پرله پسې ځي او راځي، کله رڼا کله تیاره، کله یخ او کله تودیږي) خامخا دلائل دي (د الله) لپاره د خاوندانو د (خالصو) عقلونو.

تفسیر: یعنې کله چې هوښیار انسان د آسمان او د ځمکې په پیدایښت، د هغوی په عجیبو غریبو احوالو او روابطو، او د شپې او د ورځې په مضبوط او محکم نظام کې غور کوي، نو یقین کوي چې دغه مرتبه او منظمه سلسله خامخا د یو کل اختیار، مطلق قادر، او د لوی خالق په لاس کې ده، چې په خپل عظیم قدرت او اختیار سره یې د هر وړو کي او لوی مخلوق حد بندي کړېده، او هیڅ یو شي ته د دې خبرې مجال نشته، چې د خپل حد او د عمل له دائرې ځنې د باندې پښه کېږدي، که د دې عظیم الشأن مشین یوه پرزه، یا د دې لویې کارخانې یو مزدور هم د هغه علی الاطلاق مالک له قدرت، او اختیار ځنې د باندې وای، نو د ټول عالم دا مکمل نظام به له سره ټینګ نه پاتې کېده.

(لنډه دا چېددې دنیا په ټولو موجوداتو کې د هغه الله جل جلاله په یووالي او یواځې د هغه د بندګی په استحقاق څو څو قسمه دلائل دي، او په دې چې الله تعالی بلا شک او شبهه حکیم، علیم، أحد، صمد، رحیم، قادر او قاهر دی، نو یواځې همغه د عبادت د ټولو أنواعو مستحق دی.

الَّذِیْنَ یَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِیٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰی جُنُوْبِهِمْ

دغه (عاقلان) هغه کسان دي چې یادوي الله په ولاړې او په ناستې او په اړخونو خپلو (چې پراته وي).

تفسیر: یعنې په هیڅ حال کې له الله تعالی ځنې نه غافلیږي، او د هغه یاد تل تر تله د هغوی په زړه او ژبه جاري وي، لکه چې په حدیث کې د رسول الله مبارک په نسبت عائشې صدیقې رضي الله عنها فرمایلي دي: «کان یذکر الله علی کل

أحيانه»، چې په ولاړې لمونځ نشي کولی، په ناستې سره دې لمونځ اداء کړي، او که په ناستې لمونځ نشي کولی، نو په ملاستې دې لمونځ ادا کړي.

وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَٰذَا بَاطِلًا سُبْحَٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾

او فکر کوي دوی په پيدايښت د آسمانونو او ځمکې (او د ما فيهما) کې، (نو وايي) ای ربه ځمونږه ! نه دی پيدا کړي تا دا مخلوقات عبث (بې حکمته)، پاکي ده تا لره (له ټولو عيبونو) نو وساته مونږ له عذابه د اور (د دوزخ نه) !.

**تفسير:** يعني له ذکره او فکره وروسته اشاره يې وفرمايله چې: هر هغه ناپوه او احمق چې د هسې صافو او صريحو دلائلو او آثارو له ليدلو څخه وروسته بيا هم الله جل جلاله نه پيژني، يا د الله تعالی شان وړوکی ګڼي، يا د عالم دا کارخانه چټي (بېکاره)، عبث، او لوبې بولي، نو د الله تعالی دربار له دې ټولو هزلياتو، خرافاتو، او چټي (فضول) خبرو څخه پاک او صاف دی.

له دې آيت څخه دا راښکاره شوه، چې په آسمان او ځمکه او نورو قدرتي مصنوعاتو کې غور او فکر کول هلته محمود کېدی شي، چې نتيجه يې د پاک الله يادول، او د آخرت په لوري توجه وي، پاتې شول هغه ماده پرستان چې د دې قدرتي مصنوعاتو د تارونو په حلقو کې نښتي دي، او د خالق تر صحيح معرفت پورې نشي رسېدی، اګر که دنيا هغه لوی محقق او د ساينس ښه عالم وبولي، مګر د پاک قرآن په ژبه هغه له «أولوا الألباب» څخه نه دی، بلکه په اوله درجه جاهل او احمق دی.

رَبَّنَا إِنَّكَ مَن تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهُۥ

ای ربه ځمونږه ! بېشکه ته هر څوک چې داخل کړې اور (دوزخ) ته نو په تحقيق رسوا کړ تا هغه (ای ربه !).

**تفسير:** څومره چې په دوزخ کې څوک پاتې شي، هومره خوار او رسوا ګڼل کېږي، نو د دې قاعدې سره سم د کفارو لپاره دائمي رسوايي ده، پظه هغو آيتونو کې چې له عامو مؤمنانو څخه د خزي (رسوايي) نفي کړی شوې ده، هلته دې د هغې څخه هم داسې وفهميږي ! (چې مسلمان ته دائمي رسوايي نشته).

وَمَا لِلظَّٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿۱۹۲﴾

او نشته ظالمانو (کافرانو) ته هيڅ مددګاران (د عذاب په دفعه کې).

**تفسير:** يعني الله تعالی چې د دوزخ اچولو ته د چا په نسبت اراده وفرمايي، بل څوک د هغه حمايت نشي کولی، او نه به د شفاعت اجازه ورکړه شي، هو ! د هغو لپاره به چې په اول يا په آخر کې يې پرېښودل، يا معافول مقصود وي (لکه ګناهګاران مؤمنان) د هغوی لپاره به شفعاوو ته اجازه ورکړی شي، او وروسته له شفاعته بخښل کيږي، او دا مطلب له دې آيت نه مخالف نه دی، بلکه له نورو آيتونو او صحيحو احاديثو څخه ثابت دی.

رَّبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَٰنِ أَنْ ءَامِنُوا بِرَبِّكُمْ فَـَٔامَنَّا

ای ربه ځمونږه ! بېشکه مونږ واورېده (غږ) د يوه آواز کوونکي (چې قرآن يا محمد دی)، بللې يې (خلق) ايمان ته (داسې) چې ايمان راوړئ ! په رب خپل نو ايمان راوړ مونږ (په رب خپل).

تفسير: يعني نبي كريم (عليه أفضل الصلاة والتسليم) چې په ډېر جګ آواز سره يې تولې دنيا ته غږ وکړ، يا لوی قرآن چې د هغه غږ هر کور ته رسېدلی دی، لومړی د عقلي ايمان ذکر وو، اوس په «آمنا» کې سمعي ايمان دی، چې په هغه کې ايمان بالرسول او ايمان بالقرآن هم درج دی.

رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾

ای ربه څمونږه ! نو مغفرت وکړه مونږ ته ګناهونه (لوی) څمونږ ! او لرې کړه له مونږه، ګناهونه (واړه) څمونږ، او وفات کړه مونږ (په داسې حال کې چې دا خل اوسو) سره له ډلې د نيکانو.

تفسير: يعني څمونږ لويه ګناه را عفوه کړه ! او په وړوکو خرابيو مو پرده واچوه ! او کله چې مونږ بيا ژوندي کوې، د ښو بندګانو په ډله کې مو شامل کړه !.

رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

ای ربه څمونږه ! او راکړه مونږ لره هغه چې وعده دې کړې ده تا له مونږ سره په (ژبو د) رسولانو خپلو، اومه رسوا کوه مونږ په ورځې د قيامت کې.

تفسير: يعني کومې وعدې چې تا د رسولانو په ژبه پر هغو باندې د ايمان او تصديق څخه وروسته کړې دي، په هغو سره مونږ خوښ او مستفيد کړه !، مثلا په دنيا کې مونږ مسلمانان بالآخره پر اعداء الله باندې غالب او منصور وګرځوه ! او په آخرت کې مونږ په جنت رضوان سره سرلوړي کړه ! او د قيامت په ورځ مو د دوی په لاربنوونه بيخي له ادنی رسوايي او لږې بې عزتی څخه هم وساته !

اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾

بېشکه ته (ای ربه) نه کوې مخالفت له وعدې (خپلې) نه.

تفسير: يعني ای ربه ! ستا په لوی دربار کې د وعده خلافۍ هيڅ يو احتمال نشته، او په مونږ کې دا احتمالات شته، نه چې کومه داسې غلطي له مونږ څخه څرګنده شي، چې د هغې له سببه ستا له وعدو څخه مستفيد نه شو، نو څکه دعا کوو چې مونږ ته پر هغو اعمالو د استقامت هسې يو توفيق راکړه ! چې پر هغه ستا له ګردو وعدو څخه فائده واخلو !.

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّيْ لَآ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ

پس قبولې کړې دوی لره (دا دعاوې) رب د دوی (په دې شان چې) بېشکه زه نه ضايع کوم عمل د هيڅ عمل کوونکي له تاسې نه، نارينه وي (دا عامل) يا ښځه وي، (څکه چې) ځينې ستاسې دي له ځينو نورو (او ماته په مکافات کې ټول سره يو يئ).

تفسير: يعني نارينه وي که ښځه، څمونږ په دربار کې د هيڅا خواري او تکليف نه ضايع کيږي، هر څوک چې هر کار وکړي، د هغه ثمره به مومي، دلته عمل شرط دی، د نېک عمل په وسيله ښځه هم د خپل استعداده سره سم د آخرت هغه لوېې درجې حاصلولی شي، چې نارينه يې حاصلولی شي، کله چې تاسې نارينه او ښځې د انساني يوې نوعې افراد يئ، او له يوه آدم عليه السلام څخه پيدا شوي يئ ! او په اسلامي رسۍ کې سره تړلي يئ، او يو اجتماعي ژوندون لرئ، او د معاشرت په چارو کې ګرد سره شريکان يئ؛ نو عملونه او د هغو ثمرات مو هم يو شی وګڼئ !.

په روايتونو کې راغلي دي چې رسول صلی الله عليه وسلم ته ام سلمه رضي الله تعالی عنها عرض وکړ: «یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! په قرآن کې هيڅېرې ځمونږ د ښځو د هجرت او نورو حسنه اعمالو په نسبت کوم خاص ذکر نه دی راغلی»، نو د هغې ځواب په دې آيت سره ورکړ شو.

فَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِيْ سَبِيْلِيْ وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا لَاُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ

او هغه کسان چې هجرت کړی دی دوی (لپاره د دين) او ايستلي شوي دي دوی له کورونو خپلو (د الله په لاره کې) او ضرر رسولی شوی دی دوی ته په لاره زما کې، او جنګونه يې کړي دي (له کفارو سره) او وژل شوي دي (په غزا کې)، نو خامخا به لرې کړم له دوی نه ګناهونه د دوی، او خامخا به داخل کړم دوی په جنتونو کې، چې بهيږي له لاندې د (ماڼيو او ونو د) هغو ويالې.

**تفسير:** يعنې کله چې د کوم عمل کوونکي هيڅ يو وړوکی او لوی عمل نه ضايع کيږي، نو بيا د الله تعالی خاصو هغو بندګانو ته زياته خوښي او اجر په برخه کيږي، چې د کفر او عصيان په پرېښودلو سربېره وطن او خپلوان يې هم پرېښي، او له (دار الکفر) ځنې وتلي، او له خپلو اقاربو او دوستانو ځنې جلا (جدا) شوي، له اهل او عيال، مال او منال ځنې يې ستر ګې پټې کړې، او د (دار الاسلام) په لوري روان شوي دي، ځکه چې کفارو پر دوی دومره ظلم، تېری او تجاوز وکړ، چې پخپلو کورونو کې د دوی پاتې کېدل مشکل شول، د وطن له پرېښودلو او د کور او کورنيو له جدا والي سره، بيا هم د دښمنانو له ضرره په آرام نشول، او راز راز تکليفونه يې د کفارو له لاسونو ځخه ګاللې، او دا ګرد ددې له امله وو، چې هغوئ د الله تعالی نوم ياداوه، او د توحيد کلمه يې ويله، لکه چې د «الممتحنة» سورت په (۱) آيت (۱) رکوع کې راغلي دي: ﴿يُخْرِجُوْنَ الرَّسُوْلَ وَاِيَّاكُمْ اَنْ تُؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ رَبِّكُمْ﴾ او د البروج سورت په (۸) آيت کې لولو: ﴿وَمَا نَقَمُوْا مِنْهُمْ اِلَّآ اَنْ يُّؤْمِنُوْا بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ﴾، په پای کې دا بندګان چې زما په لاره کې وجنګېدل، د دې بندګانو ګرد تقصيرات معاف کړی شوي دي، او جنت د دوی په انتظار کې دی.

ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾

(جزا د نېکيو به ورکړو مونږ دوی ته) په جزا ورکولو (نېکو) سره له نزده د الله، او الله په نزد د ده دی ښه ثواب (نېکه جزا).

**تفسير:** يعنې ښه بدل خو الله تعالی سره دی، او بل په هيڅ ځای کې نه پيدا کيږي، يا يې دا مطلب دی: چې له دې بدل ځنې ښه بدل له الله تعالی سره دی، چې هغه د الله تعالی د لوی ذات ليدل او رضاء ده (ای الله ! خپله لقاء دې ځمونږ او د ګردو (ټولو) مؤمنانو په برخه کړه !)، آمين.

لَا يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ﴿۱۹۶﴾ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۫ ثُمَّ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۗ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۹۷﴾

نه دې تېرباسي له سره تا (ای سامعه !) تلل راتلل د هغو کسانو چې کافران شوي دي (او تصرف د دوی) په ښارونو کې، (دا) فائده ده لږه، پس (له مرګه) ځای د دوی دوزخ دی، او بد ځای د هستوګنې دی (دا دوزخ).

**تفسير:** يعنې کفار چې دې خوا او هغې خوا د تجارت او نورو کارونو لپاره په ډېر تکبر او غرور سره په ګټې او فائدې پسې ګرځي، مسلمانانو ته نه ښايي چې پر دوی باندې تېروځي، ځکه چې دا د هغوی د څو ورځو بهار دی، که سړي

ته د څو ورځو لپاره ښه ډوډۍ او مکلف خواړه ورکړل شي، او بيا يې په دار وځړي، يا يې په دائمي حبس محکوم کړي، نو آيا دې ته عيش ويلی شي؟ عيش هغه دی چې سړی د څو ورځو له مخې لږ ډېر زحمت او تکليف په ځان وګالي، او د خپل دائمي راحت او خوشالۍ اسباب په اعلی درجه سره مهيأ کړي.

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا

ليکن هغه کسان چې ويرېږي دوی له ربه خپله، شته دوی لره جنتونه چې بهيږي له لاندې د (ونو او ماڼيو د) هغو ويالې، تل به وي دوی په هغو (جنتونو) کې.

نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ

په دې حال کې چې (دغه جنتونه ځای د) ميلمستيا (يو پيشکشي) ده له جانبه د الله.

تفسير: له دې کبله يې ورته په ميلمستيا سره تعبير وکړ چې له ميلمه سره د خوړلو څښلو فکر نه وي، او په عزت او آرامۍ سره ناست وي، او په خوشالۍ کې هر شی ورته تيار وررسيږي. (والله أعلم).

وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿۱۹۸﴾ وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ ۙ لَا يَشْتَرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

او هغه (باقي شی) چې په نزد د الله دی؛ خير (ډېر غوره) دی لپاره د نېکانو. او بېشکه ځينې له اهل کتابو څخه خامخا هغه څوک دي چې ايمان لري پر الله او پر هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی تاسې ته (ای مسلمانانو) او پر هغه تورات او انجيل چې نازل کړی شوی دی دوی ته، حال دا چې ويريدونکي (متواضع) دي الله لره، نه اخلي دوی په آيتونو د الله قيمت لږ، هم دغه کسان (مقرر) دی دوی لره اجر (ثواب) د دوی په نزد د رب د دوی.

تفسير: پورته د عامو متقيانو د حال بيان وشو، اوس په کتابيانو کې چې کوم متقيان دي د هغو ذکر په خصوصيت سره فرمايي، يعني هغو کتابيانو چې پر الله تعالی باندې يې په ښه ډول سره ايمان راوړی او قرآن عظيم الشأن يې منلی دی، او څرنګه دا عظيم الشأن قرآن بالذات د تورات او انجيل تصديق کوونکی دی، نو دوی ګواکې هغه هم ومنل، مګر نه په دې ډول چې دنيا خوښوونکي (احبار) يې مني، چې د لږ دنيوي ګټې لپاره د الله تعالی آيتونه پټوي يا يې بدلوي، بلکه د الله تعالی په مخکې په ډېره عاجزۍ او اخلاص سره غاړه ږدي، او هم هغه ډول چې د الله تعالی له درباره کتاب را نازل شوی دی، هغه يې په هم هغه اصلي رنګ سره ومنل.

اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹۹﴾

بېشکه چې الله ډېر ژر دی حساب (د ده يعنې ډېر ژر حساب آخلي).

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا وَصَابِرُوْا وَرَابِطُوْا ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۲۰۰﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) صبر کوئ (په طاعت، مصيبت، او له معصيته) او ټينګ اوسئ ! په صبر (د کفارو په مقابل کې) او محکم اوسئ (په اسلامي سرحداتو کې) ! او وويرېږئ له الله ! لپاره د دې چې په مراد ورسېږئ ! (بريالي شئ ! اود دوزخه نجات ومومئ !).

**تفسير:** الله تعالی د دغه سورت په پای کې مونږ مسلمانانو ته يو جامع او مانع نصيحت وکړ، چې په واقع کې د دې ګرد سورت حاصل دی، يعنې ای مؤمنانو ! که فتح او بری، او د دنيا او آخرت په مراد رسېدل غواړئ ! نو سره د سختی تېرولو په طاعت کې ټينګ اوسئ ! او له معصيت څنې ځان وساتئ ! او دښمنانو په مقابله کې خپله مضبوطي، ثابت قدمي، او مېړانه (بهادري) څرګنده کړئ ! او د اسلام د حدودو په حفاظت کې تل مشغول او لګيا اوسئ ! له هر ځايه چې د دښمن د تعرض (يرغل) انديښنه وي، هملته د اوسپنې د ديوال په شان خپل ټرونه سپر کړئ ! او پښې مو ټينګې کړئ !.

﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ (۱۰ جزء د الأنفال سورت ۶۰ آيت، ۸ رکوع) او په هر وخت او هر کار کې له الله جلت کلمتُه څخه وويرېږئ ! که تاسې داسې وکړل، نو وپوهېږئ چې په خپل مراد ورسېدئ.

تمت سورة «آل عمران» بفضل الله المنان نسأله الرحمة والغفران وخلود الجنة والرضوان ونصلی ونسلم الف الف مرة علیٰ رسوله وحبيبه سيد الإنس والجان.



# سُوۡرَةُ النِّسَاۤءِ

د«النساء» سورت مدني دی، (۱۷۶) آیتونه او (۲۴) رکوع لري، په تلاوت کې څلورم، او په نزول کې ۹۲ یم سورت دی. وروسته د «الممتحنة» له سورت څخه نازل شوی دی.

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ۝

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ اتَّقُوۡا رَبَّکُمُ الَّذِیۡ خَلَقَکُمۡ مِّنۡ نَّفۡسٍ وَّاحِدَۃٍ وَّخَلَقَ مِنۡهَا زَوۡجَهَا وَبَثَّ مِنۡهُمَا رِجَالًا کَثِیۡرًا وَّنِسَآءً ۚ

ای خلقو (تل) وویرېږئ له ربه خپله ! هغه (رب) چې پیدا یې کړئ تاسې له نفسه یوه نه (چې آدم علیه السلام دی) او پیدا یې کړه له دې (نفسه) جوړه د ده (چې حواء ده) او خپاره (خواره) یې کړل له دې دواړو څخه سړي ډېر، او ښځې (ډېرې).

تفسیر: لومړی یې د آدم علیه السلام له کیڼې پښتی څخه بي بي حواء پیدا کړه، بیا یې له دوی دواړو څخه ګرد نارینه او ښځې پیدا او په ځمکه کې یې خپاره (خواره) کړل، نو په حقیقت کې الله تعالی ټول انسانان له یوه نفس او یوه سړي څخه پیدا کړي دي، مطلب یې دا دی: کله چې له عدم څخه ستاسې د ګردو پیداکوونکی او بیا ستاسې باقي او قائم ساتونکی هم هغه یو ذات دی؛ نو ښایي چې تاسې له هغه څخه وویرېږئ ! او د هغه د امر منل یو ډېر ضروري کار وګڼئ ! له دې څخه دوه مضمونونو ته اشاره وشوه:

(اول): دا چې الله تبارک وتعالی ستاسې د ټولو خالق او موجد دی.

(دویم): دا چې د ګردو انسانانو د وجود سبب هم هغه یو نفس دی، چې له هغه څخه الله تعالی نور ګرد انسانان پیدا کړل، یعنې أبو البشر آدم علیه السلام.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیۡ تَسَآءَلُوۡنَ بِهٖ وَالۡاَرۡحَامَ ؕ

او وویرېږئ له الله ! هغه (الله) چې سوال کوئ تاسې یو تر بله په (نامه د) ده سره، او (وویرېږئ له پرېکولو) د خپلوۍ څخه.

تفسیر: سربېره پر دې چې الله جل جلاله ستاسې خالق او رب یعنې موجد او بقاء درکوونکی دی، د ده د اطاعت د وجوب یوه وجه دا ده، چې تاسې د ده په وسیله ګرځولو په خپلو منځونو کې خپل حقوق او فوائد غواړئ ! او یو بل ته د هغه په نامه قسمونه ورکوئ !، وروسته له دې دا حکم دی چې له قرابته وویرېږئ ! یعنې د اقاربو حقوق په ښه ډول سره اداء کوئ ! او د خپلوۍ له پرېکولو او بد سلوکۍ څخه ځانونه وژغورئ ! (وساتئ).

اِنَّ اللّٰهَ کَانَ عَلَیۡکُمۡ رَقِیۡبًا ①

بېشکه الله دی پر تاسې ساتونکی (نو هیڅېرې او هیڅکله ترې غافل نه شئ چې جزا درکوي).

**تفسير:** يعني الله جل جلاله ستاسې له ګردو (ټولو) اعمالو، افعالو، او احوالو څخه واقف دی، که د هغه د حکم متابعت وکړئ؛ نو ثواب به ومومئ، که نه د عذاب مستحق کيږئ، او ستاسې د ارحامو او خپلوۍ په تعلقاتو او مراتبو، او د هر يوه په مناسبو حقوقو باندې هم ښه پوهيږي، نو ځکه د هغه په نسبت هر هغه حکم چې الله جل جلاله در کړی، هغه حق وګڼئ ! او عمل پرې وکړئ !.

وَءَاتُوا۟ ٱلْيَتَٰمَىٰٓ أَمْوَٰلَهُمْ ۖ وَلَا تَتَبَدَّلُوا۟ ٱلْخَبِيثَ بِٱلطَّيِّبِ ۖ وَلَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ۝٢

او ورکړئ (ای د يتيمانو اولياوو !) يتيمانو ته مالونه د دوی (پس له رشده)، او مه اخلئ تاسې خبيث (بد، حرام مال) په طيب (ښه، حلال مال !)، او مه خورئ تاسې مالونه د دوی (يعنې د يتيمانو، ګډ) له مالونو خپلو سره، (ای وليانو ! او وصيانو !) بېشکه دا (د يتيمانو د مال خوړل) ګناه لويه ده.

**تفسير:** ديتيمانو او لياوو او سرپرستانو ته حکم دی، هر کله چې هغوی بالغ شي، نو د هغوی مال دې پرې وسپاري !، او د سرپرستۍ په وخت کې دې د يتيمانو يو ښه شی نه اخلي !، او نه دې په معاوضه کې خراب او ښکته شی د هغه په مال کې شامل کړي ! او نه دی دهغوی مال له خپل مال سره ګډ کړي !، چې وېې خوري، مثلا «ولي» لره اجازه شته چې د يتيم خواړه له خپلو خوړو سره مشترک او شامل کړي، مګر دا خبره ضروري ده چې د يتيم مال ته دې څه نقصان ونه رسوي !، او داسې دې ونه شي، چې د شرکت په پلمه (بهانه) د يتيم مال وخوري، او ورڅخه استفاده وکړي، ځکه چې د يتيم د مال خوړل لويه ګناه ده.

ښايي له دې امله به د يتيم حکم په هغو احکامو کې چې په ارحامو پورې تعلق لري مخکې ذکر شوی وي، چې يتيم د خپلې بېکسۍ، بې سرو سامانۍ، مجبورۍ، بېچاره ګۍ له کبله د زيادت رعايت، شفقت او حفاظت محتاج وی لکه چې له همدی جهته په تبديل او شرکت سره د يتيم د مال خوړل ممنوع ګرځول شوي، او په راتلونکو متعددو آيتونو کې هم د يتيمانو په نسبت څو احکام ارشاد شوي دي، چې له هغو ځنې په يتيمانو باندی لا زيات اهتمام را څرګنديږی او دا اهتمام د ګردو (ټولو) يتيمانو په حق کې دي.

هو ! هغه يتيم چې قريب او خپلوان وي، د ده په باره کې زيات تأکيد شوی دی، او همدا شان نزول او د دې آيتونو د ربط سبب هم دی، چې له عرف او عادت سره هم موافق دی، ځکه چې د يتيمانو (اولياء) غالبا هغه کسان وي چې د هغوی سره زياته خپلوي لري.

وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا۟ فِى ٱلْيَتَٰمَىٰ فَٱنكِحُوا۟ مَا طَابَ لَكُم مِّنَ ٱلنِّسَآءِ مَثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ ۖ

او که وويريږئ تاسې چې به ونه کړئ شئ عدل او انصاف په (حق د) يتيمانو کې نو په نکاح سره واخلئ تاسې (نورې) هغه ښځې چې خوښې (او حلالې) وي تاسو ته له ښځو؛ دوه دوه، او درې درې، او څلور څلور.

**تفسير:** په صحيحو احاديثو کې راغلي دي، هغه يتيمې جينکۍ چې د خپلو اولياوو تر تربيت لاندې به وې، او د هغې يتيمې او دهغې د ولي په مال او ځمکه او باغ کې به د خپلوۍ له لامله (له وجې) شرکت وو، نو دلته به دوه صورت وړاندې کېده:

(۱) كله به داسې پېښېده چې «ولي» ته به د دې جمال او مال دواړه مرغوب وو، او د دې ولي به د لږ څه مهر په بدل كې له دې سره خپله نكاح تړله، ځكه چې دې جينى به بل څوك نه درلود (لرلو)، چې د دې د حق غوښتنه يې كړې واى:

(۲): كله به داسې كېده چې د دې يتيمې جنۍ جمال به مرغوب نه وو، مگر «ولي» د دې خيال له امله: كه زه د دې نكاح له بل چا سره وتړم، نو د دې جينۍ مال به زما له لاسه ووځي، او زما په مال كې به بل څوك راسره شريك شي، نو د دې مصلحت له مخې به يې په يوه ډول له دې سره خپله نكاح تړله، خو له دې منكوحې سره به يې په زړه كې څه مينه او رغبت نه درلود (لرلو)، نو دا آيت نازل او اولياوو ته ارشاد وشو: «كه تاسې له دې خبرې څنې ويرېږئ چې د يتيمو نجونو په نسبت انصاف نشئ كولئ، او د دوى په مهر او حسن معاشرت كې له تاسې څنې تقصير پېښيږي، نو تاسې له هغوى سره نكاح مه تړئ! بلكه نورو مرغوبه وو ښځو څنې له يوې څخه نيولې تر څلورو پورې تاسې ته اجازه شته، چې د شريعت له قاعدې سره يې سم نكاح كړئ! چې له دې جهته يتيمو جونو ته څه نقصان ونه رسيږي، ځكه تاسې چې د هغوى د حقوقو حامي يئ؛ نو نه ښايي چې د حمايت لامله په كومې خرابى او ګناه كې ولوېږئ!».

تنبيه: د آزاد مسلمان لپاره له څلورو ښځو او د مريي لپاره له دوو ښځو څنې زياتې په نكاح اخيستل جائز نه دي، او په احاديثو كې هم د دې په نسبت تصريحات موجود او ديني أئمه وو هم پر دې باندې اجماع كړېده، او ګرد (ټول) امت ته هم دا حكم راغلى دى، يواځې د رسول الله صلى الله عليه وسلم خصوصيت او امتياز وو، چې له دې څنې د زياتو اجازه هم دوى ته وه.

فائده: د يتيمو جونو د نكاح دريم صورت هم په حديث كې راغلى دى: هغه يتيمه جينۍ چې د دې د مال او جمال دواړو په نسبت د دې «ولي» بې رغبته وي، او د دغه عدم رغبت لامله د دې ولي د هغې نكاح له بل چا سره تړي، مګر ښكاره خبره ده، چې د دې آيت تعلق له دې صورت سره نشته.

په ﴿وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ﴾ كې «و» په معنى د «او» دى.

د دې آيت حاصل ځينو مفسرينو داسې هم بيان كړى دى چې: «كه د يتيم له مال څخه وېره كوئ! نو له ما څخه هم سخت وويرېږئ! او له ښځو سره معامله په نكاح سره وكوئ! نه په سفاح سره! او له ډېرو ښځو هم وېره وكړئ! او له څلورو ښځو څنې زياتې مه كوئ!».

﴿فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا فَوَاحِدَةً أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾

نو (بيا كه) وويرېږئ تاسې چې عدل (انصاف برابري) به ونه كړئ شئ (د ښځو په منځ كې په نفقه، نوبت، او نورو كې)؛ نو يوه (اصيله كوئ) يا هغه وينځې چې مالكان شوي دي د هغو (وينځو) ښې لاسونه ستاسې (تاسې يې ملكان يئ).

تفسير: يعني كه تاسې له دې خبرې څنې ويرېږئ، چې په څو ښځو كې به سم له انصافه او مساواته معامله ونشئ كړئ؛ نو بيا فقط په يوې نكاح قناعت وكړئ! يا يواځې پر وينځو باندې يوه وي، كه ډېرې اكتفا وكړئ! او كه مو زړه غواړي له يوې منكوحې سره څو وينځې هم وساتئ!.

﴿ذٰلِكَ أَدْنٰى أَلَّا تَعُولُوا ۝﴾

دا (نكاح د يوې اصيلې يا د ډېرو وينځو) ښه نږدې ده دې ته چې ظلم ونه كړئ تاسې (او يو جانب ته متمائل نشئ تاسې).

**تفسیر:** یعنې یواځې له یوې ښځې سره له نکاح کولو څخه یا فقط په خپلې یوې وینځې یا ډېرو وینځو باندې په قناعت کولو کې یا له یوې نکاحي ښځې سره د یوې وینځې یا د څو وینځو په جمع کولو کې د دې خبرې امید او توقع شته، چې تاسې له بې انصافۍ او بې عدالتۍ څخه محفوظ پاتې شئ !، ځکه هغه حقوق چې زوجات یې لري، هغسې یې مملوکې وینځې نه لري، د هغوی په منځ کې د عدالت په نه کولو سره تاسې نه مؤاخذه کېږئ، نه هغوی لره مهر شته، او نه یې د معاشرت لپاره کوم حد مقرر دی.

**فائده:** هر هغه څوک چې څو ښځې لري، نو په ده باندې واجب دي، چې د دوی په خوراک، پوښاک، راکړه ورکړه او نورو کې مساوات وکړي، او د شپې له مخه د ویدېدلو لپاره هم سم له نوبته له هرې یوې ښځې سره بېل بېل هستوګنه، او جلا جلا (جدا جدا) شپه تېره کړي، که کوم مېړه (خاوند) د خپلو ښځو په حقوقو کې عدالت او برابري نه کوي، نو هغه به د قیامت په ورځ کې مفلوج (ګوزڼ وهلی) پاڅیږي، او داسې به درومي چې له خپله ځانه سره به یو لاس او یوه پښه او نور نیمایي بدن کش کاږي، او که د چا په نکاح کې یوه اصیله ښځه او یوه وینځه وي، نو وینځې ته د اصیلې ښځې نیمایي نوبت او وار دی، او هغه وینځه هیڅ د نوبت حق نه لري، چې د خپل مالك په ملك کې وي بلکه له دوی سره ناسته او ملاسته د دې د بادار په خوښې پورې مربوطه ده.

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ؕ

او ورکوئ تاسې ښځو (خپلو) لره مهرونه د دوی په ورکړه د خوشالۍ سره (چې فرض شوي دي له طرفه د الله پر تاسې).

**تفسیر:** یعنې د هغو ښځو مهرونه چې تاسې نکاح ورسره تړلې ده، په خوښۍ او رغبت سره پخپله اداء کړئ، بې له دې چې د هغوی کوم حامي یا بل څوك له تاسې ځنې د حصول څه تقاضاء وکړي، که تاسې پخپل شوق او رغبت سره د خپلو ښځو مهرونه ورکوئ ! نو بیا د یتیمو نجونو په نکاح کولو کې هیڅ کوم حرج او ممانعت نشته، بلکه حرج او ممانعت خو به هلته وي، چې د دوی د مهر یا د بل کوم حق په اداء کولو کې څه دروندوالی ولیدل شي.

فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَیْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِیْٓـًٔا مَّرِیْٓـًٔا ④

نو که راضي شوې دا (ښځې) تاسې ته (په بخښنه) له کوم شي له دې (مهره په خوشالۍ) د نفس خپل؛ نو خورئ تاسې دغه شی په داسې حال کې چې خوندوره حلاله بې ضرره وي.

**تفسیر:** یعنې که ښځه پخپله خوښه له مهر ځنې څه شی خپل مېړه (خاوند) ته معافوي، یا یې اخلي، او بیا یې ور هبه کوي، نو په دې کې هیڅ حرج نشته، او مېړه (خاوند) دې هغه په خوښۍ سره وخوري، «هنيء» هر هغو خوړو ته وایي چې خوندور او لذیذ وي، او طبیعت یې په خوښۍ او رغبت سره قبول کړي، «مريء» هر هغو خوړو ته وایي چې په زړه پورې هضم او په ډول سره د بدن جزء او د صحت او قوت موجب شي.

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِیٰمًا وَّارْزُقُوْهُمْ فِیْهَا وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ⑤

او مه ورکوئ (مه سپارئ) تاسې !بې عقلانو ته مالونه خپل هغه چې ګرځولي دي الله لپاره ستاسې سبب د ګزران، او روزي ورکوئ دوی ته په دې مالونو کې، او جامې ورکوئ دوی ته، او ووایئ دوی ته خبره معروفه (نېکه، خوږه، پسته، معقوله).

تفسير: يعنې د ناپوهو هلكانو (ليونيانو، وړو اولادونو او ښځو) په لاس كې د دوى هغه مالونه مه وركوئ ! چې ستاسې په تصرف كې وي، او الله تعالى هغه انسانانو لره د معيشت سامان جوړ كړى دى، بلكه هغه په پوره حفاظت سره وساتئ ! او د هلاكت له اندېښنې څخه يې وژغورئ (وساتئ) !، او تر څو پورې چې دوى پخپله نفع او نقصان باندې ونه پوهيږي؛ تر هغه وخته پورې ورته له همغه ځنې خوراك او كالي (جامې) وركوئ ! او تسلي وركړئ چې دا ګرد مال ستاسې دى، مونږ ستاسې فائده غواړو، كله چې تاسې پوه شوئ؛ دا ګرد مال تاسې ته دركاوه كيږي.

(يا دا معنى چې مه سپارئ كم عقلو، ليونيانو، يتيمانو، او ښځو خپلو ته، مالونه خپل د دوى د بلوغ تر وخته پورې، او خوراك او پوښاك دوى ته وركوئ ! او د لاسه كوئ يې ! او نه ښايي چې مالونه بې ځايه ولګول شي، څكه چې مالونه د بدن د قوام او د ټولو كارونو د سرته رسولو سبب دى، يعنې د مالونو په وسيله په دنيا كې مأكول، مشروب، ملبوس، مسكن او نور، او په دين كې زكات، خيرات، حج، عمره، نفقه، صدقه او نور منځ ته راځي).

وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰٓى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَإِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ ۚ

او وازمويئ تاسې يتيمان تر هغه پورې كله چې ورسيږي دوى (حد، د) نكاح ته، نو كه ومونده تاسې له هغو نه هوښياري (په معاملاتو او د مال په ساتنه كې) نو وسپارئ تاسې هغوى ته مالونه د هغوى !.

تفسير: يعنې يتيمانو ته ښوونه او د دوى روزنه او ازموينه د بلوغ تر وخته پورې كوئ !، كه وروسته له بلوغه په دوى كې د ګټې او د تاوان پوهه او د مال د انتظام او د حفاظت تميز وموميء ! نو د دوى مال وروسپارئ ! د يتيمانو د وركوونې او ازموينې عمده صورت همدا دى، چې د معمولي او د كم قيمت شيانو بيع او شراء په دوى باندې وكړل شي !، او د هغو طريقه دې دوى ته وروښوول شي !.

وَلَا تَأْكُلُوْهَآ إِسْرَافًا وَّبِدَارًا أَنْ يَّكْبَرُوْا ۚ

او مه خورئ تاسې دا (د يتيمانو ناپوهانو مالونه) په اسراف سره (چې له ضرورته زيات وي) او په جلتۍ سره (پخوا له حاجته، د ويرې د دې) چې دوى به لوي شي (نو وابه يې خلي).

تفسير: يعنې د يتيمانو مال له ضرورته زيات صرفول منع دي، لكه چې د يوې پيسې په ځاى دوه پيسې صرف كړي، او دا هم منع ده، چې له دې خبرې ځنې وويريږي ! كه دا يتيم لوى شي، نو خپل مال به له ما ځنې بېرته واخلي، نو په صرفولو كې يې تلوار په كار دى، خلاصه يې داسې شوه، چې بايد د يتيم مال د ضرورت په اندازه او د وخت له غوښتنې سره سم صرف شي.

وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ

او هر څوك چې وي مالداره نو ښايي ځان پاك وساتي (د يتيمانو له مالونو څخه) او هر څوك چې وي فقير، نو خوري دې له دې مال څخه په معروف (له دستور سره سم د مزدورۍ په اندازه) سره.

تفسير: يعنې «ولي» دى د يتيم مال د خپل ځان لپاره نه خرڅوي، او كه د يتيم پالونكى او تربيه كوونكى محتاج وي، كولى شي چې د خپل خدمت په اندازه د يتيم له مال ځنې خپله مزدوري واخلي ! مګر غني ته له سره څه اخيستل روا نه دي.

فَإِذَا دَفَعۡتُمۡ إِلَيۡهِمۡ أَمۡوَٰلَهُمۡ فَأَشۡهِدُواْ عَلَيۡهِمۡۚ وَكَفَىٰ بِٱللَّهِ حَسِيبٗا۝٦

نو کله چې ور کړئ (وسپارئ) تاسې دغو (یتیمانو) ته مالونه د دوی، نو شاهدان ونیسئ تاسې پر دوی باندې، او کافي دی الله په دې حال کې چې ښه حساب کوونکی (او جزا ورکوونکی) دی.

تفسیر: کله چې د کوم وړوکي پلار مړ شي، نو ښايي چې د ټو مسلمانانو په مخ کې د یتیم مال ولیکل شي ! او بیا یې امانتدار ته وسپاري ! کله چې دا یتیم بالغ او هوښیار شي، نو سم له هغه لیک سره دې د هغه مال بېرته ورکړي ! او څومره شی چې صرف شوی وي، د هغه حساب دې هم وروښيي، او هغه شی چې پر یتیم باندې سپاري، ښايي چې په هغه باندې هم شاهدان ونیسي، او ور ويې ښيي، څو د راتلونکي اختلاف او جګړې په وخت کې خبره په سهولت سره صافه، او شخړه ورکه شي.

لِّلرِّجَالِ نَصِيبٞ مِّمَّا تَرَكَ ٱلۡوَٰلِدَانِ وَٱلۡأَقۡرَبُونَ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيبٞ مِّمَّا تَرَكَ ٱلۡوَٰلِدَانِ وَٱلۡأَقۡرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنۡهُ أَوۡ كَثُرَۚ نَصِيبٗا مَّفۡرُوضٗا۝٧

شته نارینه وو لره (هم، لوي وي که واړه) نصیب د دوی له هغه ماله چې پرېښی وي مور او پلار او خپلوانو، او شته ښځو لره (هم، لويې وي که وړې) نصیب (برخه) له هغه ماله چې پرېښی وي مور او پلار او خپلوانو هغه (مبلغ) چې لږ وي له دې ماله او که ډېر وي، نصیب (برخه) مقرر کړی شوی (له طرفه د الله نه).

تفسیر: د رسول اکرم صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلم له زماني څخه پخوا دا رسم وو، چې لویو او وړو جینکو او نابالغانو هلکانو ته به یې میراث نه ورکاوه، او یواځې هغو نارینه وو ته به یې میراث رسېده، او وارثان ګڼل کېدل؛ چې لویان او د دښمنانو د مقابلې او مقاتلې لیاقت به یې درلود، چې په دې سبب وړو یتیمانو ته له میراث څنې هیڅ شی نه ورکول کېده، نو د دوی په نسبت دا آیت نازل شو، چې خلاصه یې داده: «دمور او پلار او نورو خپلوانو له متروکه مال څنې نارینه وو یعنې ځامنو لره اعم له دې نه چې وړوکی وي یا ځلمی د دوی برخه رسیږي، او ښځو لره یعنې لوڼو ته اعم له دې چې وړوکې وي یا پېغلې د مور او پلار او نورو خپلوانو له ترکې څنې د دوی برخه ورکولی کیږي، او دا برخې ټاکلې شوې دي، هغه متروکه مال لږ وي، که ډېر؛ د هغو ورکول ضروري دي، په دې سره د جاهلیت د بد رسم ابطال وشو، او د یتیمانو او د نورو د حقوقو حفاظت یې وفرمایه، او د دوی د حق تلفی مخه یې بیخي ونیوله.

فائده: په دې آیت کې د حق لرونکو حق او د هغه تقرر او تعیین بالاجمال راښوول شوی دی، په وروستنی رکوع کې د وارثانو د برخې تفصیل راښوول کیږي.

وَإِذَا حَضَرَ ٱلۡقِسۡمَةَ أُوْلُواْ ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينُ فَٱرۡزُقُوهُم مِّنۡهُ وَقُولُواْ لَهُمۡ قَوۡلٗا مَّعۡرُوفٗا۝٨

او کله چې حاضر شي ویش (تقسیم د میراث) ته خاوندان د خپلوی (چې وارثان نه وي) او یتیمان او مسکینان؛ نو روزي ورکوئ تاسې دوی لره له هغه (میراثه) او ووایئ تاسې دوی ته خبره معروفه (خوږه معقوله).

تفسیر: یعنې د میراث د تقسیم په وخت کې چې ټول خپلوان یو تر بله سره ټول شي، که له دې خپلوانو څخه ځینې داسې وي چې هغوی ته میراث نه ورسیږي، یا یتیم او محتاج وي، نو دوی ته څه خواړه ورکړئ ! او رخصت یې

کړئ! یا له موقع سره مناسب کوم شی له ترکې ځنې ورته ورکړئ! ځکه چې داسې سلوک مستحب دی، که د میراث په مال کې د خوراك وړ شی نه وي، یا يې موقع نه وي، لکه چې هغه د یتیمانو مال وي، او مړي وصیت هم نه وي کړی، نو له دې خپلوانو سره ښې مناسبې او معقولې خبرې وکړئ! او رخصت يې کړئ! یعني په پسته ژبه سره له دوی ځنې معذرت وغواړئ! او داسې ورته ووایئ چې: «دا مال د یتیمانو دی، او مړي وصیت هم نه دی کړی، نو ځکه مونږ مجبور یو، چې له تاسې ځنې معذرت وغواړو».

وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ۝

او ودې ویریږي (د یتیمانو پر ضیاع) هغه وصیان که پریږدي دوی پس له (مرګه) خپل اولاد ضعیفان (نو) ویریږي به دوی په دغو (اولادونو چې وروسته له مونږ به دوی هم داسې شي) پس ودې ویریږي دوی له الله څخه او ودې وایي دوی ته خبره سمه خوږه.

تفسیر: په اصل کې دا ارشاد د یتیم د «ولي» او «وصي» لپاره دی، نورو ته هم درجه په درجه ښایي چې د دې خبرې خیال وساتي، مطلب دا چې هر سړي سره دې دا اندېښنه وي، «نه چې زما له مرګه وروسته زما له اولادې سره څه سخته معامله وکړه شي»، نو ددې لامله تاسو لره هم ښایي چې له یتیمانو سره همغسې معامله وکړئ، چې تاسې يې خپلو ځامنو ته پس له مرګه غواړئ، او له الله تعالی ځنې وویرېږئ! او له یتیمانو سره سمې ښې خوږې خبرې کوئ! یعني هسې معامله له دوی سره وکړئ، چې په هغې باندې د دوی زړه مات نشي، او نه دوی ته څه تاوان ورسیږي، بلکه تل تر تله د هغوی د اصلاح، ښېګڼې (ښه والي)، تعلیم، تربیې، تأدیب، او تهذیب خیال ولرئ، (او قریب الموت مریض ته نصیحت وکړئ! چې په وصیت کې د ورثې د حقوقو له تضییع ځنې ځان وساتئ، او د شهادت کلمه او توبه په خوله کې ورکړئ! او د ترکې او د قسمت حاضرینو سره ښه د انسانیت او مېړانې وضعیت وکړئ!.

إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ۝

بېشکه هغه کسان چې خوري دوی مالونه د یتیمانو په ظلم سره (بې له شرعي اذنه) خبره دا ده چې خوري دوی (اچوي) په ګېډو خپلو کې سور اور، او ژر به ننه وځي دوی اور سخت ګرم ته.

تفسیر: هر هغه څوك چې د یتیم مال بلا استحقاقه خوري، هغه خپله ګېډه د جهنم له اوره ډکوي، یعني د هسې خوراك انجام به داسې کیږي، او دا يې په آخره جمله کې راښکاره کړه.

يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ ۖ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ۚ

حکم کوي تاسې ته الله په (حق د میراث د) اولاد ستاسې کې چې (تاسې مړه شئ)، شته نارینه لره (له میراثه) په مثل د برخو د دوو ښځو.

تفسیر: که د کوم میت په اولاده کې هلك او جینۍ دواړه وي، نو هغوی ته د میراث ورکولو دا قاعده ده، چې یوه هلك ته به د دوو جینکو حصه ورکوله کیږي، مثلا که یو هلك او دوه جینکۍ وي، نو نیمايي مال هلك ته او بله نیمه يې هغو دوو جونو ته ورکوله کیږي، او که یو ځوی او یو لور ترې پاتې وي، نو دوه ثلثه هلك ته او یو ثلث جینۍ ته ور رسیږي.

فَإِن كُنَّ نِسَآءً فَوۡقَ ٱثۡنَتَيۡنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَۖ وَإِن كَانَتۡ وَٰحِدَةً فَلَهَا ٱلنِّصۡفُۚ

نو که وو دا (اولاد خالصې) ښځې پورته له دوو څخه (یا دوه) نو (شته) دوی لره دوه ثلثه (دوه دریمې برخې) د هغه مال چې پرېښی وي (مړي)، او که وه دا (مولوده لور) یوه؛ نو هغې لره نصف (یعنې نیمایي د ترکې دی).

**تفسیر:** یعنې او که د کوم مړي په اولاده کې یواځې ښځې یعنې لوڼې پاتې شي، او ځوی نه وي ترې پاتې، نو که دا جونه له دوه څخې زیاتې، یا دوه وي، بیا هم هغو ته همدا دوه ثلثه (دوه دریمې) رسیږي، او که یواځې یو جینۍ ترې پاتې وي، نو دې ته د پلار نیمایي ترکه ور رسیږي.

**تنبیه:** د ﴿لِلذَّكَرِ مِثۡلُ حَظِّ ٱلۡأُنثَيَيۡنِۚ﴾ په ذیل کې دا راڅرګنده شوه، چې یوې جینۍ ته له یوه هلك سره یو ثلث ور رسیږي، نو له دې څخې معلومه شوه چې یوې جینۍ ته به له بلې جینۍ سره په طریق الأولی یو ثلث ور رسیږي، ځکه چې د هلك حصه د جینۍ له حصې څخې زیاته ده، نو کله چې د هلك په سبب د دې برخه له یوه ثلث څخه کمه نشوه، نو د بلې جینۍ له سببه به څرنګه هغه برخه لږ کېدی شي؟ کله چې د دوو جونو حکم په پخواني آیت کې معلوم شوی وو، نو ځکه په دې کې له دوو څخې د زیاتو لوڼو حکم هم رانښیي، چې چاته داسې کومه شبهه پیدا نشي، کله چې د دوو لوڼو حق د یوې جینۍ له حق څخې زیات وي، نو ښایي د درو او څلورو او د ډېرو برخې به له هغه زیات وي، حال دا چې خبره داسې نه ده، بلکه کله چې لوڼې له یوې څخې زیاتې وي، دوه وي، که لس، که زیاتې، هغو ګردو ته به همغه دوه ثلثه رسیږي.

**فائده:** د اولاد د وراثت دوه صورتونه په آیت کې ذکر شول:

(۱): دا چې هلك او جینۍ دواړه نوعه اولاد موجود وي.

(۲) دا چې لوڼې ولري، او دا دوه صورتونه لري، چې یوه لور وي، یا له یوې زیاتې وي، نو اوس یواځې یو صورت پاتې دی چې یواځې هلکان ولري، نو دهغه حکم دادی چې ګرد میراث به هغوی ته وررسیږي، اعم له دې چې یو وي که ډېر.

وَلِأَبَوَيۡهِ لِكُلِّ وَٰحِدٖ مِّنۡهُمَا ٱلسُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِن كَانَ لَهُۥ وَلَدٞۚ

او شته مور او پلار د ده (مړي) ته لپاره د هر یوه له دې دواړو سدس (شپږمه برخه) له هغه مال چې پرېښی وي (مړي) که وي مړي لره ولد (ځوځات).

**تفسیر:** او س د مور او پلار د میراث درې صورتونه بیان فرمایي: د اول صورت خلاصه داده: «که د میت اولاده ځوی یا لور وي، نو د میت مور او پلار ته د ده له ترکې څخې هر یوه ته سدس، شپږمه برخه ور رسیږي».

فَإِن لَّمۡ يَكُن لَّهُۥ وَلَدٞ وَوَرِثَهُۥٓ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ ٱلثُّلُثُۚ

نو که نه وي ده لره ولد (ځوځات) حال دا چې میراث اخلي له ده (مړي څخه یواځې) مور او پلار د ده؛ نو دي مور د ده لره ثلث (دریمه برخه د ترکې، او نوره ټوله د پلار ده).

**تفسیر:** د دوهم صورت خلاصه دا ده: «که میت هیڅ اولاد ونلري، او یواځې مور او پلار یې وارث وي، نو د هغه مور ته یو ثلث «دریمه» ور رسیږي، یعنې نور پاتې دوه ثلثه د هغه پلار ته ور رسیږي.

فَإِن كَانَ لَهُۥٓ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ ٱلسُّدُسُ

نو كه وي مړي لره وروڼه (يا خويندې) نو شته مور د ده لره سدس (د تركې شپږمه برخه).

**تفسير:** دريم صورت دا دى: كه د ميت له يوه څخه پورته وروڼه او خويندې وي، كه سكني وي، كه د پلار له لوري يا د مور له لوري وي، او اولاد هيڅ ونه لري، نو په دې صورت كې د ده مور ته سدس (شپږمه) برخه ور رسيږي، يعنې باقي ګرد د هغه پلار ته پاتې كيږي، ورور او خور ته هيڅ نه ور رسيږي.

مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ

پس له (اداء كولو د) وصيت څخه چې وصيت وكړي ميت په هغه سره، يا پس (له ادا كولو) د دَين څخه.

**تفسير:** يعنې هومره چې د وارثانو برخې ذكر شوي دي، دا ټولې د ميت د وصيت، او د هغه د قرض له اداء كولو څخه وروسته وارثانو ته وركولى كيږي، او د وارثانو حق فقط په هغومره مال كې كيږي، چې د وصيت او د قرض د مقدار له ايستلو څخه وروسته پاتې كيږي، او نصف (نيمايي) او ثلث (درييمه برخه) او نور له همدې پاتې مال څنې مراد دي، نه له ګرد مال څخه.

**فائده:** د ميت مال دې اول د ده په ګور او كفن كې ولګاوه شي ! څه چې له هغه څخه پاتې شي، له هغه څخه دې د ده قرض وركړ شي ! څه چې د ده له قرض څخه پاتې شي، له هغه څنې تر يوه ثلثه پورې (درې يمې برخې) پورې دې د مړي په وصيت كې صرف كړ شي !، وروسته له ګور او كفن او قرض او پس له أداء د وصيت څخه (د مال په ثلث كې): په پاتې متروكه كې ګرد وارثان شريك دي، او هغه تركه پر دوى باندې ويشله كيږي.

ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُونَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا ۚ فَرِيضَةً مِّنَ ٱللَّهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١١﴾

پلرونه ستاسې او ځامن ستاسې نه پوهيږئ تاسې چې كوم يو له دوى زيات نږدې دى تاسې ته له جهته د نفعې، (دا برخې فرض شوي دي) مقرره برخه له (جانبه) د الله، بېشكه چې الله دى ښه عالم (په ټولو احوالو) ښه حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي).

**تفسير:** په دې آيت كې يې دوه ډوله (قسمه) ميراث بيان كړ، د اولاد ميراث او د مور او پلار، اوس فرمايي: څرنګه چې دا خبره تاسې ته معلومه نه ده، چې له كوم يوه څنې به تاسې ته نفع؟ او څومره نفع در ورسيږي؟، نو ځكه په دې كې تاسو ته نه ښايي چې څه مداخله وكړئ، هره برخه او حصه چې الله تعالى هر چا ته مقرره كړېده، د هغه رعايت وكړئ ! ځكه چې الله تعالى پر هر شي باندې ښه خبردار او لوى حكمت والا دى.

۞ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَٰجُكُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ ٱلرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ ۚ مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ ۚ

او شته تاسې ته نيم د هغه مال چې پريښى دى ښځو ستاسې كه نه وي دې ښځو لره ولد (ځوځات)، نو كه وي دې ښځو لره ولد (ځوځات) نو تاسې لره شته څلورمه برخه له هغه ماله چې پريښى وي دې ښځو پس (له ادا كولو) د وصيت نه چې وصيت يې كړى وي (دې ښځو) په هغه سره يا (پس له اداء كولو د) دين څخه (چې وي په دې ښځو باندى څه قرض).

**تفسیر:** اوس د زوجینو د میراث بیان کاوه شي، چې مېړه (خاوند) لره د ده د ښځې له مال څخه نیمایي ور رسیږي، که دا ښځه اولاد ونه لري، او که اولاد ولري، اعم له دې چې یو ځوی یا یوه لور یا ډېر ځامن او لونې، له دې مېړه (خاوند) څخه، یا له بل مېړه (خاوند) څخه ولري، نو مېړه (خاوند) ته د دې له مال څخه ربع (څلورمه برخه) وروسته له ورکولو د قرض او وصیت څخه ور رسیږي.

وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِن لَّمْ يَكُن لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِن كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُم ۚ مِّن بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ

او شته دې ښځو لره څلورمه برخه له هغه مال چې پرېښی وي تاسې که نه وي تاسې لره ولد (ځوځات)، نو که وو تاسې لره ولد (ځوځات) نو دې ښځو لره ثمن (اتمه برخه) له هغه ماله چې پرېښی وي تاسې پس له ادا کولو د وصیت چې وصیت کوئ تاسې په هغه سره، یا پس له اداء کولو د دَین (قرض، چې وي پر تاسو ای خاوندانو).

**تفسیر:** او هم داسې ښځې لره چې مېړه (خاوند) یې اولاد نه لري، د دې د مېړه (خاوند) له مال څخه ربع (څلورمه برخه) ور رسیږي. که اولاد لري اعم له دې چې له همدې ښځې څخه وي که له بلې ښځې څخه؛ نو ښځې ته ثمن (اتمه برخه) د دې د مېړه (خاوند) له هغه مال څخه ور رسیږي، چې د وصیت او قرض له ادا کولو څخه وروسته پاتې وي، له هر قسم مال څخه نغد وي که جنس، وسله وي که ګاڼه (زېور)، سرای وي که باغ، پاتې شو د ښځې مهر، هغه له میراث څخه جلا او په قرض کې داخل دی، دا ټول دوه صورتونه لري، لکه چې د نارینه د میراث صورتونه هم دا دوه وو.

وَإِن كَانَ رَجُلٌ يُورَثُ كَلَالَةً أَوِ امْرَأَةٌ وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ

او که وو یو سړی چې میراث ترې وړل کیږي کلاله (بې ولده بې والده) یا ښځه وه (هم داسې کلاله) حال دا چې وي دې مړي لره (یو اخیافي) ورور یا (اخیافي) خور پس شته هر یوه لره له دې (اخیافي) ورور او خوره سدس (شپږمه برخه د ترکې).

**تفسیر:** له دې ځایه د «اخیافي» ورور او خور ذکر دی، چې یواځې په مور کې سره شریکان وي، نو ښایي وپوهیږئ ! چې د پلار او ځوی د پاتې کېدلو سره ورور او خور ته هیڅ نه ور رسیږي، هو ! که والد او ولد نه وي، نو ورور او خور ته به میراث ورسیږي، ورور او خور په درې ډوله دي:

(۱): سکني چې په مور او پلار کې سره شریکان وي، چې دوی ته «عیني یا أعیاني» وایي.

(۲) «علاّتي» چې یواځې په پلار کې سره شریکان وي.

(۳) «أخیافي» چې یواځې په مور کې سره شریکان وي.

په دې آیت کې د «أخیافي» ذکر دی، کله چې د متعددو اصحابو کرامو په قرائتونو کې د ﴿وَلَهُ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ﴾ څخه وروسته د «من الأم» کلمه په تصریح سره شته، او په دې باندې د ګردو اصحابو اجماع ده، چې په دې ځای کې له (أخ) څخه أخیافي ورور مراد دی.

د دې آیت مطلب دا دی چې هر هغه میت نارینه وي که ښځه چې مور او پلار او لور او ځوی هیڅ نه لري، او یواځې یو «أخیافي» ورور یا خور ولري، نو له دې دواړو څخه هر یوه ته سدس (شپږمه برخه) ور رسیږي، او د نارینه او ښځې یعنې د «أخیافي» ورور او خور برخه برابره ده، او هیڅ زیادت او کمی په کې نشته، پاتې شو دوه ډوله ورور

او خور: يعنې «عيني» او «علاتي» نو د دې دواړو حکم لکه د اولاد داسی دی، په دې شرط چې د مړي پلار او ځوی هيڅ نه وي، مقدم «عيني» دی، که هغه نه وي نو «علاتي» دی، د «النساء» د سورت په آخر کې د دې دواړو د ميراث ذکر هم راځي.

فَإِنْ كَانُوٓا۟ أَكْثَرَ مِن ذَٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِى ٱلثُّلُثِ مِنۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَىٰ بِهَآ أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَآرٍّ

نو که وو (ورونړه خويندې د کلالې) زيات له دغه (يو ورور او خور څخه) نو دوی ګرد سره شريکان دي په ثلث (دربمه برخه د ترکې) کې وروسته له (اداء کولو د) وصيت چې وصيت کولی شي په هغه سره، يا پس (له اداء کولو) د دَين، په دې حال کې چې (نورو ته) نقصان ونه رسوئ (په دې وصيت کې).

تفسير: يعنې که د «أخيافي» ورور او خور له يوه څخه زيات وي، نو دوی ګردو (ټولو) ته همغه يو ثلث (دربمه برخه) په ميراث ور رسيږي، او په لومړني صورت کې هغه «سدس» (شپږمه) او په وروستني صورت هغه «ثلث» چې ورکاوه کيږي، له وصيت او قرض څخه وروسته څه مال چې باقي پاتې کيږي؛ له همغه څخه دا «ثلث» يا «سدس» ورکاوه کيږي، او وصيت هلته صحيح او پر ميراث باندې مقدم کېدی شي، چې په هغه کې د نورو څه زيان نه وي، او دا زيان دوه صورتونه لري:

(۱): دا چې له يوه «ثلث» څخه يې د زيات مال وصيت کړی وي.

(۲): دا چې د هغه وارث لپاره چې هغه ته له ميراث څخه هم برخه ور رسيږي؛ څه وصيت وکړي، په دې دواړو صورتونو کې وصيت صحيح نه دی، هو ! که ګرد ورثه هغه وصيت سره مني، نو ښه ! که نه هسې وصيتونه ګرد مردود دي.

فائده: څرنګه چې له وارثانو څخه اندېښنه وه، چې د ميت له ترکې څخه به د ميت وصيت او قرض اداء نه کړي، بلکه ټول مال به د خپلو ځانونو لپاره وساتي، نو ځکه يې له ميراث سره هر ځلې د وصيت او د دين د حکم تأکيد بيان کړ، او کله چې وصيت تبرع او احسان دی، او ډېر ځله يو معين سړی د دې مستحق نه وي، او له دې سببه د هغه د ضايع کېدلو احتمال قوي وو، نو ځکه يې د اهتمام او احتياط لامله په هر ځای کې له دين (پور) څخه د وصيت ذکر د مخه فرمايلی دی، حال دا چې د وصيت درجه له دين څخه وروسته ده، لکه چې پخوا تېره شوه، (يعنې لکه چې هيڅوک د دين په اداء کې غفلت نه کوي، همداسې دې په وصيت کې هم نه کوي !) او هم وصيت د مورث حق دی لکه تجهيز او تکفين، پرته له وراثت او قرض څخه چې هغه د نورو حق دی، نو له دې حيثيته به وصيت له قرض څخه مقدم وي، اګر که له بلې وجې قرض په وصيت باندې وړاندې دی، او دلته د ﴿غَيْرَ مُضَآرٍّ﴾ قيد زيات شوی دی، همدا قيد به په نورو سابقه ځايونو کې هم معتبر وي.

وَصِيَّةً مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿۱۲﴾

وصيت کوي الله تاسې ته وصيت له (جانبه) د الله، او الله ښه عالم دی (په ټولو احوالو) ډېر تحمل والا (په تأخير د عقوبت لپاره د انابت).

تفسير: هغه ميراثونه چې د دې رکوع له شروع څخه تر دې ځايه پورې بيان شوي دي، پنځه دي:

(۱) ځوی، لور (۲) مور، پلار (۳) مېړه (خاوند) (۴) ښځه (۵) أخيافي ورور، خور.

همدې پنځو وارو ته ذوي الفروض يعنې د معلومو برخو خاوندان وايي (په استثناء د ځوی چې عصبه دی) د دې پنځو وارو د ميراث أحكام يې بيان كړل، په پای كې يې د تاكيد په ډول وفرمايل: «دا حكم د پاك الله دی، او تعميل يې ضروري دی، او الله جل جلاله ته هر شی معلوم دی، چې كوم يو اطاعت كوي، او كوم يو غاړه غړه وي؟ او كوم يو په ميراث، وصيت، او قرض كې له حق او انصاف سره سم كار كوي، او كوم يو بې انصافي كوي، او ضرر رسوي؟ او په دې خبره دې هيڅوك ونه غوليږي، چې د ظلم او بې انصافی په سزا كې ولې تأخير كيږي؟ ځكه چې د الله تعالى حلم ډېر كامل دی.

**فائده:** ښايي وپوهيږو چې پرته له «ذوي الفروضو» څخه چې د هغو ذكر په همدې ركوع كې تېر شو، يو بل قسم وارث هم دی، چې هغه ته «عصبه» وايي، او هغو لره كومه معينه برخه لكه نصف (نيمايي) او ثلث (دريمه) او ثلثان (دوه برخې له درې برخو) او ربع (څلورمه برخه) او سدس (شپږمه برخه) او نور نه ده مقرره، بلكه هر هغه شی چې له «ذوي الفروضو» څنې كوم يو نه وي، نو د هغه ټول مال (عصبه) ته ور رسيږي، او كه «ذوي الفروض» او «عصبه» دواړه وي، نو اول «ذوي الفروضو» ته او كه ترې پاتې نشو «عصبې» ته هيڅ نه ور رسيږي، او اصلي «عصبه» هغه دی چې نارينه وي، ښځه نه وي، او د ده او د مړي په مينځ كې د ښځې واسطه هم نه وي، او د دوی درجې څلور دي:

(۱) ځوی او لمسی.

(۲) پلار او نيكه.

(۳) ورور او وراره.

(۴) تره او د تره ځوی يا د ده لمسی.

كه څو تنه «عصبه» موجود وي، نو ميراث همغو عصبه وو ته رسيږي؛ چې مړي ته نږدې وي، لكه د لمسي په مقابل كې ځوی، او د وراره په مقابل كې ورور وړاندی دی، نو بيا د «أخيافي» او «علاتي» په مقابل كې «أعياني» مقدم دی، ددې څلورو وارو په استثناء او له ورور سره خور هم «عصبه» كيږي، دا اصلي «عصبه» نه دي، بلكه غير اصلي دي، پرته له اولاده او ورونو څخه د نورو نارينه وو سره ښځې نه «عصبه» كيږي، مثلاً د تره ځوی «عصبه» دی، مګر ده سره د تره لور «عصبه» نشي كېدی.

**فائده:** د دې پاس ذكر شويو قسمونو يعنې «ذوي الفروضو» او «عصبه وو» څخه علاوه ځمونږ د امام أبو حنيفه «رحمه الله» په نزد دريم قسم وارث «ذوی الأرحام» هم شته، يعنې داسې قرابت لرونكي چې د ده او دمړي په منځ كې د ښځې واسطه وي، چې نه «ذوي الفروض» وي، او نه «عصبه» لكه لمسی، نيا، خوريي، ماما، ترور، توړې او د دوی اولاده، كله چې له كوم مړي څخه نه «ذوي الفروض» او نه «عصبه» يو هم نه وي پاتې، نو د هغه ميراث «ذوو الأرحامو» ته ور رسيږي، د دې تفصيل په كتابونو كې مذكور دی.

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۗ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ
وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۳﴾ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۠
وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۴﴾

دا (د يتيمانو، ميراثونو، وصيت، او د دين تېر شوي حكمونه) حكمونه د الله دي، او هر څوك چې ومني حكم د الله او د رسول د ده؛ نو داخل به كړي الله دغه (مطيع په هسې) جنتونو كې چې بهيږي به له لاندې د (ماڼيو او ونو د) هغو ويالې، هميشه به وي (دوی) په دې (جنتونو) كې، او

دا (ننوتل جنت ته) مراد مونډل (بری) دي ډېر لوی، او هر څوک چې نافرماني کوي د الله، او د رسول د ده، او وځي له حدوده د الله؛ نو داخل به کړي (الله) دغه (معتدي) اور ته چې همېشه به وي (دې) په هغه (اور د دوزخ) کې او (شته) ده ته عذاب ډېر سپکوونکی.

تفسير: يعنې دا پخواني ټول ذکر شوي احکام (چې د يتيمانو حقوق،وصيت او ميراث دی) د الله جل جلاله مقررې کړی شوې ضابطې او قاعدې دي، هر هغه څوک چې اطاعت کوي، او د الله تعالی احکام مني، چې په هغو کې د وصيت او د ميراث حکم هم شامل دی، نو د هغه لپاره تل جنت دی، او هر هغه څوک چې سر غړوي، او د الله تعالی له حدودو څخه بيخي خارجيږي (يعنې حلال يې حرام او حرام يې حلال ګڼي) نو هغه له ذلت او خواری سره تل د جهنم په عذاب کې پاتې کيږي.

وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآىٕكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَیْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِی الْبُیُوْتِ حَتّٰی یَتَوَفّٰىهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا ۝۱۵

او هغه (مېرمني) ښځې چې راځي فاحشې (د زنا قبيح کار) ته له ښځو ستاسې، نو شاهدان وغواړئ (ای قاضيانو له قاذفه) پر دوی باندې څلور تنه له تاسې (مسلمانانو نه)، نو که شاهدي وويله (شاهدانو پر زنا) نو بندي کړئ تاسې دا (ښځې) په کوټو کې تر هغه پورې چې وفاتې کاندي دوی لره موت، يا وګرځوي (مقرر کړي) الله دوی لره کومه لاره د (خلاصي له بنده).

تفسير: «د ښځو تأديب او سمول يو ضروري امر دی، خو پر دوی باندې هيڅ قسم ظلم او تعدي کول ښه کار نه دی»، د جاهليت په زمانه کې په دې دواړو مواردو کې پر ښځو باندې ډېر تېری او بې اعتدالي کېده، او په دې آيت کې د هغو د تأديب په نسبت حکم دی: «که د کومې زوجې په نسبت د زنا ارتکاب معلوم شو، نو د دې لپاره څلور تنه شاهدان چې هر يو يې مسلمان، عاقل، بالغ، او آزاد وي، ونيسئ !، که دا څلور واړه پر زنا يې شاهدي ورکړي؛ نو دا ښځه دې په کوټه کې مقيده وساتي، او هسې انتظام دې وکړي ! چې له کوره ونه وځي، او له چا سره کتنه ونه کړی شي، تر څو چې هغه ښځه مړه شي، يا الله تعالی د هغې لپاره کوم حکم او سزا مقرره وفرمايي، د دې آيت د نزول تر وخته يې د زانيې لپاره کوم حد نه وو مقرر فرمايلی، بلکه د تعيين وعده يې کړه، کله چې څه موده وروسته يې په (۱۸) جزء د «النور» د سورت په (۲) آيت، اوله رکوع کې د هغې حد نازل کړه، چې د باکرې لپاره يې سل دُرې او د ثيبې لپاره «رجم» يعنې په ګټو سره ويشتل دي، تر څو چې مړه شي.

وَالَّذٰنِ یَاْتِیٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ

او هغه دوه سړي چې راځي دې (قبيح کار ته) له تاسې، نو ايذاء ورسوئ دوی ته !.

تفسير: يعنې که دوه تنه اعم له دې چې يو نارينه وي او بل ښځه وي، يا که دواړه نارينه وي، يا دواړه ښځې (من حيث السحق) وي، او د بد فعل مرتکب شي، نو د هغوی سزا يې مجملا په ايذاء ورکولو سره ارشاد وفرمايله، په ژبه سره وي، که په خوله سره، هومره چې مناسب وي، د هغو د تأديب او تنبيه ورکولو حکم شوی دی.

د لواطت لپاره يې کوم جدا بيان ونه فرمايه، او په هغه کې د عالمانو سره اختلاف دی، چې د «لواطت» لپاره هم هغه حد مقرر دی، چې د «زنا» لپاره ټاکلی شوی دی، يا د «لواطت» همغه سزا باقي پاتې ده چې پخوا وه، يا دهغه سزا په توره يا په بله کومه طريقه سره وژل دي.

**فائده:** اکثر علما دا آیت پر زنا محمولوي، او ځینو پر «لواطت» حمل کړی دی، او ځیني یې پر دواړو شامل ګڼي، (ځیني وایي: ﴿وَالَّتِي﴾ - ﴿مِن نِّسَآئِكُمْ﴾ ...» پر سحاقاتو، او ﴿وَالَّذَانِ﴾ - ﴿مِنكُمْ﴾ ...» په لواطت کوونکو او ﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي﴾ په زانیانو پورې مخصوص دی، نو په دغه تقدیر پاس آیت نه دی منسوخ).

فَإِن تَابَا وَأَصْلَحَا فَأَعْرِضُوا عَنْهُمَآ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿۱۶﴾

نو که توبه ویستله دې دواړو او اصلاح کړ دواړو (عمل خپل) نو څنګ وکړئ (مخ واړوئ) تاسې له دې دواړو نه، بېشکه چې الله دی ښه توبه قبلوونکی (د ګناهګارانو) ډېر رحم کوونکی.

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ فَأُولَٰٓئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۷﴾

بېشکه (قبلول د) توبې په الله (د وفاء له مخې) دي لپاره د هغو کسانو چې کوي دوی ناکاره عمل په ناپوهۍ سره، بیا توبه وباسي دوی، په نږدې زمانه کې (له موت نه پخوا) نو دغه کسان رجوع به کوي په رحمت سره الله په دوی باندې، او دی الله ښه عالم (په پټو او ښکاره وو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

**تفسیر:** یعنې توبه خو بېشکه داسې شی دی، چې په هغه سره د «زنا» او د «لواطت» په شان درانه جرمونه هم الله تعالی معافوي، لکه چې له پخواني آیت څخه مفهوم شو، لیکن د دې خبرې لحاظ هم ښایي خامخا وکړو، الله تعالی په خپل فضل او کرم سره د توبې د قبلولو وعده فرمایلې ده، هغه اصلاً په هغو خلقو پورې مخصوصه ده، چې په بې خبرۍ او ناپوهۍ سره کومه کبیره یا صغیره ګناه ترې صادره شي، مګر هر کله چې په خپلې خرابۍ باندې متنبه او مطلع شي، نو سمدلاسه پښېمانه او توبه وکړي، نو الله تعالی داسې خطاوې خامخا (تفضلاً) ور معافوي، او پاک الله پر هر شي باندې پوهېږي، او دا خبره ورته ښکاره ده چې کوم یوه په ناپوهي سره ګناه کړې ده؟ او کوم یوه په اخلاص سره توبه ایستلې ده؟ او د حکمت څښتن (خاوند) دی، د هر چا توبه چې سم له حکمته سره وي قبلوي یې.

**فائده:** د «جهالت» او د «قریب» له قیدونو معلومېږي، هر څوک چې د ناپوهۍ لامله ګناه کوي، او وروسته له تنبیه ژر توبه کوي، نو (تفضلاً) د عدالت او د حکمت له قاعدې سره سم د هغه توبه قبلوي، او هر څوک چې په قصد او عمد سره د پاک الله له احکامو څخه د غاړې غړولو جرأت وکړي، یا وروسته د خپلې ګناه له پوهیدلو څخه په توبه ایستلو کې تأخیر او په همغه پخواني حالت باندې قیام او دوام کوي؛ نو د عدل او انصاف له قاعدې سره سم د هغه خطا اصلاً د معافولو وړ نه ده، او د هغې قبلول یواځې د الله تعالی فضل او کرم دی، چې په خپلې مهربانۍ سره د دوی دواړو توبې قبلوي، دا خو د پاک الله احسان دی، او (تفضلاً) ذمه واري فقط په اول صورت کې ده، او په نورو کې نشته.

وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّـَٔاتِ حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْـَٰٔنَ وَلَا الَّذِينَ يَمُوتُونَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۚ أُولَٰٓئِكَ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿۱۸﴾

او نشته (وعده د قبول د) توبې لپاره د هغو کسانو چې کوي دوی ګناهونه، تر هغه پورې چې راحاضر شي یو د دوی ته مرګ، نو وایي: چې بېشکه ما توبه وویسته اوس، او نه (قبلېدی شي توبه) لپاره د هغو کسانو چې دوی مړه شي حال دا چې دوی کافران وي، دغه کسان (چې د کفر په حالت کې مري، په عین غرغره کې توبه کوي) تیار کړی دی مونږ دوی ته عذاب دردناک.

**تفسیر:** یعني د داسې خلقو توبه نه قبلیږي، چې پر له پسې ګناه کوي، او له ګناه څخه مخ نه اړوي، تر څو چې د مرګ علامې او اسباب په نظر ورشي، نو په هغه وخت کې وایي چې: زه اوس توبه کوم، او نه د هغه چا توبه قبلیږي چې د کفر په حالت کې مړ شي، او وروسته د اخروي عذاب له لیدلو څخه توبه کوي، د داسې خلقو لپاره شدید عذاب تیار دی.

**تنبیه:** دا دواړه آیتونه چې د توبې د قبول او د توبې د عدم قبول په نسبت دلته مذکور دي، د دوی کوم مطلب چې مونږ پاس بیان کړ، هغه د ځینو لویو محققینو له تحقیقاتو سره سم دی، او په هغه کې دا ښه والی دی چې د «جهالت» قید او د «قریب» لفظ دواړه په خپلې ظاهري معنی باندې قائم پاتې دي، او د «علی الله» معنی هم په سهولت سره جوړه شوه، او په دې موقع کې د توبې د قبول او عدم قبول د ذکر فرمایلو مقصد هم په ښه شان سره عیان شو، یعني د «کیفما اتفق» توبه مقبوله نه ده، او د توبې څو صورتونه دي، او د دې په مقبولیت کې هم فرقونه شته، تر څو چې د توبې په اعتماد څوک پر ګناهونو باندې جرأت ونه کړي، او دا مقصد هم په دې صورت سره ښه حاصلیږي.

مګر نورو مفسرینو حضراتو چې علی العموم د دې آیتونو مطلب یې ارشاد فرمایلی دی، د «جهالت» قید یې «احترازي» او «شرطي» قید نه دی اخیستی، بلکه (واقعي) قید یې ګڼي، او وایي چې: ګناه تل له جهله او حماقته څرګندیږي، او د «قریب» معنی داسې کوي چې: د موت له راتللو څخه پخوا څومره وخت چې وي، هغه ګرد ته «قریب» ویلي شي، ځکه چې د دنیا ژوندون قلیل دی.

نو په دې صورت کې یې مطلب داسې کیږي چې: «د الله تعالی هغه وعده چې د توبې د قبلولو په نسبت یې فرمایلې ده، له هغو سره ده، چې د ناپوهۍ او د خپل پای او انجام د نه کتلو لامله ګناه کوي، او بیا د موت له راتګه څخه پخوا تائب کیږي، او هغه کسان چې موت یې لیدلی او د نزعې حالت ته رسېدلي دي، یا هغه کسان چې کافران مړه شوي دي، نو د دوی توبه له سره نه قبلیږي، له دې تقریره سره به سم د توبه کوونکو د هغو د دوو بین بین صورتونه چې په لومړني تقریر کې مذکور شوي دي، په اول شق (د توبې په قبول) کې شمېرل کیږي».

**فائده:** کله چې د موت یقین راشي، او بل عالم په سترګو وکتلی شي، نو په هغه وخت کې توبه نه قبلیږي، هو! د اخروي عالم له کتلو څخه پخوا توبه قبلیږي، چې له لومړني تفسیر سره په اول صورت کې د توبې قبول د عدل او انصاف له قاعدې سره سم دی، او په نورو صورتونو کې د توبې قبول یواځې د هغه په فضل او کرم سره دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَن تَرِثُوا۟ ٱلنِّسَآءَ كَرْهًا ۖ وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا۟ بِبَعْضِ مَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ إِلَّآ أَن يَأْتِينَ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (ای مؤمنانو!) نه دی حلال تاسې لره دا (کار) چې په میراث به اخلئ تاسې ښځې په زور سره، او مه منع کوئ تاسې دا (ښځې) د نکاح کولو نه لپاره د دې چې یوسئ (ترې واخلئ) تاسې ځینې د هغه مال چې ورکړی وي تاسې دوی ته (په مهر کې) مګر چې راشي (وکاندي) دوی فاحشه (قبیح کار: نشوز یا زنا) ښکاره.

تفسیر: په پخواني بیان کې یې د ښځو د بد افعالی او د تأدیب او سمولو حکم ورکړی وو، اوس د اهل جاهلیت له هغه ظلم او تعدی څخه منع فرمایي، چې په ډول ډول صورتونو پر ښځو باندې اجراء کېدل، د هغو صورتونو له منځه یو صورت دا هم وو: «کله چې به څوک مړ کېده نو د دې مړي ښځه به د علاتي ځوی یا ورور یا د بل کوم وارث له لوري بندي ساتله کېده، بیا به یې که زړه غوښتل له هغې سره به یې نکاح تړله، یا به یې همغسې بې نکاح په خپل کور کې ساتله، او د هغې ټول مهر یا څه برخه به یې ترې آخیسته، یا به یې تر مرګه پورې هلته بندۍ ساتله، او د هغې د مال به وارث کېده»، نو د دې په نسبت دا آیت نازل شو، چې خلاصه یې دا ده: «کله چې څوک مړ شي نو د هغه

مړي ورور يا بل کوم وارث لره دا اختيار نشته، چې هغه ښځه په زور سره په خپله نکاح کې کې راولي، او نه هغه ښځه د بل چا له نکاح منع کولی شي، هو ! که هغې کومه صريحه بد عملي وکړله، نو له هغې بد عملی څخه د هغې منع کول په کار دي».

وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۚ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَن تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴿١٩﴾

او ګزران کوئ تاسې (ای مړونو) له دې (ښځو) سره په نېکې طريقې سره !، پس که خوښې نه وې ستاسې دا ښځې نو (صبر وکړئ) ښايي چې نه به خوښوئ تاسې يو شی حال دا چې ګرځولی به وي الله په دې شي کې خير ډېر.

**تفسير:** يعنې له ښځو سره په خبرو اترو (په افعالو او احوالو، په نفقه او کسوت، په مسکن او مأمن) او نورو معاملاتو کې په ښو خويونو سره معامله وکړئ ! د جاهليت په شان (چې د ذلت او د سختې سلوک له ښځو سره کېده) له هغوی سره خراب سلوک مه کوئ ! بيا ستاسې د کومې ښځې کوم خصلت او خوی او عادت خوښ نه وي، نو صبر وکړئ، کېږي چې په هغې کې کومه فائده هم وي، او ممکن دی چې تاسې ته کوم شی ښه نه درښکاري، او الله تعالی په هغه کې ستاسې لپاره ديني يا دنيوي کومه ګټه ايښې وي، نو تاسې لره تحمل کول په کار دي، او له بد خوی سره بد خويي نه ښايي چې وکړه شي.

وَإِنْ أَرَدتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا ۚ أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٢٠﴾

او که اراده وکړئ تاسې (ای مړونو) د بدلولو د يوې ښځې په ځای د بلې ښځې (چې يوه طلاقه او بله نکاح کړئ !) حال دا چې ورکړی وي تاسې يوې ته د دوی ډېر مال (په مهر کې هم) نو مه اخلئ تاسې (ای مړونو ! بېرته) له هغه مال نه هيڅ شی، آيا اخلئ به تاسې دغه (مال) په نا حقه (په دروغو بې موجبه) او په ګناه ښکاره (ظلم ظاهر سره).

**تفسير:** له اسلام څخه پخوا داسې هم کېده، کله چې به کوم مېړه (خاوند) غوښتل چې خپله پخوانی ښځه پرېږدي، او له بلې کومې ښځې سره نکاح وتړي، نو پر پخوانی ښځه باندې به يې تهمت لګاوه، او راز راز ظلم تېری او سختې به يې پرې راوستې، تر څو هغه مجبوره شي، او خپل مهر بېرته ورکړي، چې مېړه يې هغه مهر په خپلې نوې نکاح کې ولګوي، دا آيت د دې کار څخه د منعې راوړلو لپاره نازل شو.

وَكَيْفَ تَأْخُذُونَهُ وَقَدْ أَفْضَىٰ بَعْضُكُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ وَأَخَذْنَ مِنكُم مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿٢١﴾

او څرنګه به اخلئ تاسې هغه مال، حال دا چې په تحقيق سره رسېدلي دي ځينې له تاسې ځينو (نورو) ته (په طريقه د مباشرت سره)، او اخيستئ دی (ښځو) له تاسې نه عهد کلک (د صحبت او ممازجت «قربت» په حق کې).

**تفسير:** يعنې کله چې نارينه او ښځه له نکاح څخه وروسته يو ځای شي، او د ناستې ملاستې وار راشي، نو د هغې په معاوضه کې ټول مهر ورکول په مېړه باندې واجبېږي، نو اوس مېړه هغه مهر له دې ځنې په کوم سبب اخيستی شي؟ ! او که يې مهر نه وي ور رسولی نو د هغې مهر څرنګه معطلولې شي؟ اوس پرته له دې نه چې هغه مهر دا ښځه په خپله خوښه سره ورپرېږدي د نجات او د ژغورنې (بچ کېدلو) بله کومه لاره نه ده پاتې.

فائده: ښايي چې وپوهيږو: لکه چې وروسته له مجامعته ټول مهر د مېړه (خاوند) په غاړه لازميږي، هم داسې که مجامعت ته وار ونه رسيږي، مګر صحيحه خلوت يې ورسره کړی وي، نو بيا هم پوره مهر واجب الأداء ګرځي، هو ! که صحيحه خلوت ته هم وار نه وي رسېدلی، او مېړه (خاوند) يې طلاق ورکړي؛ نو بيا د مسمی مهر نيمايي ورکول پرې لازميږي.

وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم مِّنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ۚ إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿٢٢﴾

او مه اخلئ تاسې په نکاح سره هغه (ښځې) چې نکاح کړې دي پلرونو ستاسې له ښځو، مګر هغه چې پخوا له دې تېرې شوي دي، بېشکه چې دا (کار) دی فاحش (ډېر ناکاره) او ډېر مبغوض (شرعې ته)، او بده (ده دا) لاره (عُرف ته).

تفسير: د جاهليت خلقو له خپلو ميرو ميندو، او نورو ځينو محرماتو سره هم نکاح کوله، چې د هغې ذکر اوس تېر شو، نو دلته له هسې نکاح څخه هم ممانعت کاوه شي، چې تاسې له هغو ښځو سره چې ستاسې پلرونو نکاح ورسره تړلې وي؛ نکاح مه تړئ ! ځکه چې دا بېحيايي او د الله تعالی د غضب سبب، او ډېر منفور کار، او ډېره بده طريقه ده، او د جاهليت په زمانه کې هم پوهانو هغه مذموم ګاڼه، او هسې نکاح ته يې د (مقت نکاح) او له دې نکاح څخه چې به کوم وړوکی پيدا کېده هغه ته به يې «مقتي» ويل، هسې نکاح هومره چې شوي دي، شوي دي، وروسته له دې نه دې بيخي ونه کړه شي !.

فائده: کوم حکم چې د پلار د منکوحې په نسبت دی، په همغه حکم کې د پلارنيو او مورنيو نيکونو منکوحې هم داخلې دي، اګر که د ډېرو پورته نيکونو هم وي.

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ

حرامې کړی شوي دي پر تاسې ميندې ستاسې او لوڼې ستاسې او (حرامې شوي دي پر تاسې) خويندې ستاسې، او عمې (ترورياني) ستاسې، او خالې (توړياني) ستاسې، او لوڼې د ورور (وريرې ستاسې)، او لوڼې د خور (خورځې ستاسې).

تفسير: د ميرې د نکاح د حرمت له بيانولو نه وروسته اوس د هغو ګردو ښځو بيان کوي، چې له هغوی سره نکاح تړل جائز نه دي، او دا ښځې (۱۴) قسمه دي، ۷ نسبي، او ۷ سببي.

اول د هغو بيان کاوه شي، چې د نسب د علاقې له سببه حرامې دي، او هغه اوه دي: (۱) مور (۲) خور (۳) لور (۴) ترور (۵) توړی (۶) وريره (۷) خورځه، چې له دوی څخه له هيڅ يوې سره نکاح تړل جائز نه دي، (او حرمت يې ابدي دی).

فائده: د مور تر حکم لاندې مورنی او پلارنی نياګانې تر آخره پورې ګردې داخلې دي، هم داسې د لور تر حکم لاندې لمسی، کړوسی تر آخره پورې ټولې داخلې دي، او په خور کې عيني (سکه چې مور او پلار يې يو وي) علاتي (چې پلار يې يو او مور يې بېله بېله وي) او أخيافي (چې پلار يې بېل بېل وي، او مور يې يوه وي) ګردې داخلې دي، او په ترور (عمې) کې د پلرونو، نيکونو، خويندې تر پورتنيو پېړيو پورې عيني وي، که علاتي يا أخيافي؛ ګردې داخلې دي، او په توړی (خالې) کې د مور نيا، د نيا نيا او د ګردو خويندې سره له درې واړو قسمونو داخلې دي، او په وريره کې د درې قسمونو ورڼو أولاد، أولاد الأولاد ټول داخل دي، او په خورځه کې د درې قسمه خويندو أولاد، أولاد الأولاد ګرد سره داخلې دي.

وَأُمَّهَٰتُكُمُ ٱلَّٰتِيٓ أَرۡضَعۡنَكُمۡ وَأَخَوَٰتُكُم مِّنَ ٱلرَّضَٰعَةِ

او (حرامې کړی شوي دي پر تاسې) میندې ستاسې هغه چې تی یې درکړی وي تاسې ته، او خویندې ستاسې له جهته د تي رودلو.

**تفسیر:** په «نسبي» محرماتو پسې اوس د «رضاعي» محرماتو ذکر کیږي، او هغه دوه دي، (۱) رضاعي مور. (۲) رضاعي خور، او په دې کې اشاره ده چې اوه واړه خپلوی چې په نسب کې سره بیان شوي، په رضاعت کې هم حرامې دي، یعنې رضاعي لور، ترور، توړی، وریره، او خورځه، ګرد سره محرماتې دي، لکه چې په احادیثو کې دا حکم شته.

وَأُمَّهَٰتُ نِسَآئِكُمۡ وَرَبَٰٓئِبُكُمُ ٱلَّٰتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ ٱلَّٰتِي دَخَلۡتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمۡ تَكُونُواْ دَخَلۡتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ وَحَلَٰٓئِلُ أَبۡنَآئِكُمُ ٱلَّذِينَ مِنۡ أَصۡلَٰبِكُمۡ وَأَن تَجۡمَعُواْ بَيۡنَ ٱلۡأُخۡتَيۡنِ إِلَّا مَا قَدۡ سَلَفَۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ﴿٢٣﴾

او (حرامې کړی شوي دي پر تاسې) میندې د ښځو ستاسې، او پرکټیانې ستاسې هغه چې په غېږو ستاسې کې (یې تربیت موندلی، او پیدا شوي) دي؛ له ښځو ستاسې هغه چې دخول (مجامعت) کړی وي تاسې له دوی سره، پس که نه وئ تاسې چې دخول (مجامعت) کړی دی تاسې له دوی سره؛ نو نشته هیڅ ګناه پر تاسې باندې (په نکاح) د پرکټیو کې، (او حرامې کړی شوي دي پر تاسې) ښځې د ځامنو ستاسې، هغه چې له شاګانو ستاسې (پیدا) دي، او (حرامې کړی شوي دي پر تاسې دا کار) چې جمع وکړئ په منځ د دوه وو خویندو کې مګر هغه چې په تحقیق پخوا تېرې شوي دي، بېشکه چې الله دی ښه مغفرت کوونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسیر:** اوس د «مصاهرې» د محرماتو ذکر دی، یعنې د نکاح د علاقې له سببه چې له چا سره نکاح حرامیږي، او هغه په دوه قسمه ده:

(اول): هغه چې له دې سره د تل لپاره نکاح نا جائزه ده، هغه د زوجې د مور او د دې زوجې لور ده، چې د هغې له موره سره تاسې جماع کړې وي، او په دوی کې تر لاندې پورې د لمسي او کړوسي ښځې هم داخلیږي، او له دوی سره ستاسی نکاح له سره روا نه ده.

(دویم): قسم هغه ده، چې له دوی سره تل د نکاح ممانعت نه وي، بلکه تر هغه پورې چې کومه ښځه ستاسې په نکاح کې وي، تر هغه پورې د دې ښځې نورو خپلوانو ښځو سره د نکاح ممانعت وي، خو کله چې هغې ښځې ته طلاق ورکړئ ! یا وروسته مړه شي، نو بیا له هغو سره به مو نکاح تړل روا کیږي، او دغه د هغې زوجې خور ده چې د زوجې په شتوالي کې له هغې سره نکاح نه ده روا، او وروسته له هغې ورسره نکاح جائزه ده، او همداسې د زوجې د عمې، خالې وریرې او خورځې حکم دی.

**فائده:** دا یې چې وفرمایل: ښځې ستاسې د هغو ځامنو چې ستاسې له شاګانو وي، د هغه مطلب دا دی چې: ستاسې ځامن یا لمسي نسبي وي، نه د خولې، یعنې تش ستاسې په غېږو کې لوی شوي نه وي، چې هغه ته «متبنی» وایي، او له «رضاعي» ځنې احتراز نه دی.

او د ﴿إِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ﴾ مطلب دا دی چې د جاهلیت په زمانه کې او له دې حکم څخه پخوا هغه اجتماع چې د دوه وو خویندو په منځ کې شوې ده، هغه معاف ده.

او ﴿فِي حُجُورِكُم﴾ له فرمايلو څخه دا مطلب دی «هغه چې تاسې يې پخپلې غېږې کې روزنه او پالنه کوئ، يعنې د اولاد په شان له هغوی سره معامله کوئ»، ګواکې د زړه له کومې يې اولاد ګڼئ، له دې څخه د دوی د نکاح حرمت لا ښکاره شو، او دا مطلب نه دی چې د هغوی د حرمت لپاره د هغوی پالل او روزل په غېږ کې ضروري دي.

﴿وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ كِتَابَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ﴾

او (حرامې کړی شوي دي پر تاسې) مېړوښې (منکوحې) له ښځو مګر هغه (مېړوښې ـ منکوحې) چې مالکان شوي دي (د هغو) ښي لاسونه ستاسې، فرض کړی دی الله پر تاسې (تحريم د دې پورته محرماتو).

تفسير: د محرماتو له ذکر کولو څخه وروسته اوس د هغو ښځو د حرمت بيان فرمايي؛ چې د بل چا په نکاح کې وي، يعنې هغه ښځه چې د بل چا په نکاح کې وي د هغې نکاح له بل سره نه روا کيږي، تر څو چې هغه په طلاق يا وفات له خپل مېړه جدا او د طلاق يا موت عدت يې پوره نشي، نو تر دې وخته پورې هيڅوک له دې سره خپله نکاح نشي تړلی، که کومه مېړوښه (منکوحه) ښځه ستاسې په «ملك اليمين» کې راشي، نو هغه له دې حکم څخه مستثنی او پر تاسې باندې روا ده، اګر که مېړه (خاوند) يې ژوندی هم وي، او دې ته يې طلاق هم نه وي ورکړی، او صورت يې دا دی چې يو کافر نارينه له يوې کافرې ښځې سره نکاح تړلې وي، او مسلمانان پر «دار الحرب» باندې يرغل (حمله) ووروړي، او هغه مېړوښه (منکوحه) ښځه اسيره کړي، او «دار الاسلام» ته يې راولي، نو دا ښځه چې د هر مسلمان په لاس ورغلې وي هغه ته حلاله ده، آګر که د هغې مېړه په «دار الحرب» کې ژوندی موجود وي، او خپلې دې ښځې ته يې طلاق هم نه وي ورکړی.

د ګردو محرماتو له بيانولو څخه وروسته تأکيد فرمايي چې دا د الله جل جلاله حکم دی، د هغه منل پر تاسې باندې لازم دي، (کتاب الله د محذوف فعل مصدر دی، يعنې کتب الله عليکم حرمة هذه المحرمات، ليکلې دي الله حرمت د دغو محرماتو پر تاسې باندې په ليکلو سره، او تقدير يې کړی په تقدير کولو سره).

﴿وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ أَن تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُم مُّحْصِنِينَ غَيْرَ مُسَافِحِينَ﴾

او حلالې کړی شوي دي تاسې ته (ټولې ښځې) چې پرته له دوی څخه دي (په دې شرط) چې طلب وکړئ تاسې (د هغو) په مالونو خپلو (چې مهر دی)، په دې حال کې چې ساتکوني شئ (د خپل دين په نکاح سره) نه زنا کوونکي.

تفسير: يعنې بې له هغو (۱۵) اقسامو ښځو څخه د دوی د حرمت بيان وشو، نورې ګردې ښځې په څلورو شرطونو حلالې دي:

(۱): دا چې طلب يې کړئ ! يعنې په ژبې سره «ايجاب» او «قبول» د دواړو له خوا وشي.

(۲) دا چې مهر ورکول ومنئ !.

(۳) دا چې د هغې ښځې پخپل واک (اختيار) کې راوړل او په قيد او قبضه کې ساتل مقصود وي، او تش ورسره شهوت پرستي مقصود نه وي، لکه چې په زنا کې وي، يعنې د هميشه لپاره هغه د ده ارتينه (ښځه) شي، او بې له

پر ښنودلو او طلاقولو له خپل مېړه څخه بېلېدلی نشي، مطلب دا چې کومه موده نه وي مقرره شوي، نو له دې ځنې د «متعه» حرمت ښکاره شو، چې د حق د خاوندانو پرې اجماع ده، (چې پر همدې داهل حقو اجماع هم ده).

(۴) شرط چې په نورو آيتونو کې مذکور دی، دا چې په مخفي ډول سره دوستي نه وي، يعنې لږ تر لږه دوه نارينه يا يو نارينه او دوې ښځې د دې نکاح په معامله کې شاهدان وي، که بې له شاهدانو ايجاب او قبول وشي، نو هغه نکاح نه صحيحه کيږي، او زنا بلله شي.

فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ؕ

پس هر هغه ښځه چې نفع واخيسته تاسې په هغې سره له دې (منکوحو ښځو) څخه نو ورکړئ تاسې دوی ته مهرونه د دوی، په دې حال کې چې فرض کړی شوی دی.

تفسير: يعنې له هغې ښځې سره چې نکاح وتړله شوه، او مېړه له هغې څخه تر لږې يا ډېر ټاکلې مودې پورې نفع هم واخيسته، يا لږ تر لږه يو ځلې «وطي» يا صحيحه خلوت ته وار ورسېد، نو د دې ښځې پوره مهر ورکول لازميږي، تر څو چې هغه ښځه خپل مهر ور ونه بخښي، نو په هيڅ ډول هغه د ده له غاړې څخه نه خلاصيږي، که ښځه بيخي په کار ورنشي، او پخوا له صحيحه خلوت مېړه يې طلاق ورکړي، نو د مقرر مهر نيمايي پرې لازميږي.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۴﴾

او نشته ګناه پر تاسې باندې (ای مېړونو او ښځو !) په هغه شي کې چې راضي شوي يئ تاسې په هغې باندې پس له مقررولو (د مهر)، بېشکه چې الله دی ښه عالم (په پټو او ښکارو) ډېر حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعنې که زوجين د مهر له مقررولو څخه وروسته پر کومه خبره باندې سره راضي شول، مثلا ښځه په خپله خوښه له مهر ځنې څه شی لږ کړي، يا نارينه پخپله رضا سره له مقرر مهر څخه څه زيات ورکړي، نو مختار دی او په دې کې هيڅ وبال نشته، او داسې دې ونه کړي چې له مقرر مهر څخه مېړه څه شی لږ کړي !، يا ښځه له هغه څخه څه زيات وغواړي، هو ! د دواړو خواوو رضا شرط ده.

(يا دا معنی چې د نفقې، صحبت، مفارقت او نورو په کيفيت کې په هر شان چې بيا سره راضي شول).

په آخره کې يې وفرمايل چې: الله تعالی ته ستاسې ګرد مصالح او هر راز نفع او نقصان ښه معلوم دی، او هر حکم چې فرمايي هغه بيخي له ګټې او حکمت څخه ډک وي، د هغه په متابعت کې ستاسې د دارينو منافع او ښېګڼې او په مخالفت کې يې ستاسې نقصان او تاوان دی.

وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ؕ

او هغه څوک چې توان نه لري له تاسې له جهته د غنی د دې چې په نکاح واخلي اصيلي مؤمني ښځې، نو (په نکاح دې واخلي) له هغو ښځو چې مالکان شوي دي (د هغو) ښې لاسونه ستاسې، له (هغو) وينځو ستاسې چې مؤمني وي.

تفسير: يعنې هغه څوک چې د دې خبرې قدرت نه لري، چې له آزادې ښځې سره خپله نکاح وتړي، او د هغې د مهر او د نفقې تحمل وکړی شي، نـو داسې سړي لره دا بهتره ده چې له کومې داسې مسلمانانې وينځې سره خپله نکاح وتړي، چې د هغې مهر لږ او نفقه يې هم آسانه وي، او که مالک يې په خپل کور کې وساتي (لکه چې اکثر يې ساتي

هم) نو مېړه (خاوند) يې د هغې له نفقې څخه فارغ البال ګرځي، او که مېړه ته يې ور وسپاري، نو بيا هم د اصيلې د نفقې په نسبت د دې وينځې په نفقه کې خامخا تخفيف شته.

وَاللّٰهُ اَعۡلَمُ بِاِيۡمَانِكُمۡ ؕ بَعۡضُكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡضٍ ۚ

او الله ته ښه معلوم دی ايمان ستاسې، ځينې ستاسې له ځينو نورو يئ! (يعنې ټول د يوه پلار آدم اولاده يئ!).

تفسير: يعنې الله تعالی ته ستاسې د ټولو د ايمان اصلي کيفيت معلوم دی، تاسې لره ښايي چې په ښکاره باندې اکتفاء وکړئ!، د ځينو وينځو ايمان د الله تعالی په نزد د ځينو آزادو ښځو له ايمان څخه بهتر او افضل کېدی شي، نو د ايمان له حيثيته د وينځې په نکاح کولو کې نه ښايي چې څه انکار وکړئ، ځکه تاسې په خپلو منځونو کې ګرد سره يو او له يوه اصله پيدا شوي يئ! او په يوه دين کې سره شريکان يئ، نو بيا له وينځو سره نکاح تړل ولې عيب او ننګ او عار ګڼئ؟ په دې کلام سره د وينځو د نکاح په لوري توجه ورکول او له دوی څخه د نفرت د احساس لرې کول مطلوب دي.

فَانۡكِحُوۡهُنَّ بِاِذۡنِ اَهۡلِهِنَّ وَاٰتُوۡهُنَّ اُجُوۡرَهُنَّ بِالۡمَعۡرُوۡفِ مُحۡصَنٰتٍ غَيۡرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخۡدَانٍ ۚ

نو په نکاح واخلئ (د بل چا) وينځې په اذن د بادارانو مولاګانو د دوی، او ورکړئ تاسې دوی ته مهرونه د دوی په معروف (سم له دستوره په نېکه وجه) سره، چې وي دوی عفيفې ساتلې شوې له زنا، چې نه وي زنا کوونکې په ښکاره، او نه وي نيوونکې د پټو يارانو.

فَاِذَاۤ اُحۡصِنَّ فَاِنۡ اَتَيۡنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيۡهِنَّ نِصۡفُ مَا عَلَى الۡمُحۡصَنٰتِ مِنَ الۡعَذَابِ ؕ

نو کله چې مېړوښې (واده) کړی شوې دوی، پس که راتله وکړه دوی په فاحشه (زنا) سره؛ نو په دوی باندې نصف (نيمائي) د هغه څه دی چې په اصيلو ښځو باندې دی د عذاب (له حده چې پنځوس دُرې دي).

تفسير: يعنې هر هغه آزاد نارينه يا ښځه چې له نکاح څخه يې فائده اخيستې وي، يعنې روا مجامعت يې کړی وي، او بيا زنا کوي، نو دا زاني دې سنګسار او په ګټو سره دې وويشتلی شي! او که نکاح يې نه وي شوې، او يخوا له نکاح څخه يې زنا وکړه، نو د هغه لپاره حکم دی چې يو سل دورې دې وواهه شي، او مريي او وينځې لپاره مخکې او وروسته له نکاح څخه په هر حالت کې يواځې د پنځوسو درو وهلو حکم شته او بس.

ذٰلِكَ لِمَنۡ خَشِىَ الۡعَنَتَ مِنۡكُمۡ ؕ وَاَنۡ تَصۡبِرُوۡا خَيۡرٌ لَّكُمۡ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ۝۲۵

دا (په نکاح اخيستل د وينځو) لپاره د هغه چا دي چې ويرېږي له ضرره (چې زنا ده) له تاسې نه، او دا چې صبر وکړئ تاسې (له وينځو) خير (غوره) دی تاسې ته، او الله ښه مغفرت کوونکی دی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: يعنې په تاسې کې له وينځو سره د نکاح کولو ارشاد او استحسان د هغه سړي په حق کې دی، چې له مشقت تکليف او ضرره يعنې د زنا له اخته کېدو ويرېږي، که تاسې صبر وکړئ! او له وينځو سره نکاح ونه کړئ! نو دا ستاسې په حق کې ډېره ښه ده، ځکه چې ستاسې اولاد به آزاد وي، هو! له هر چا سره چې څه اندېښنه وي، چې صبر او تحمل به ونشي کولی، نو هغه ته دا بهتره ده چې په هسې حالت کې کومې وينځې سره خپله نکاح وتړي، او الله ښه بخښونکی دی لپاره د صبر کوونکو.

يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦﴾

اراده لري الله چې بيان کړي تاسې ته (شرعي احکام) او وښيي تاسې ته لاره د هغو کسانو چې پخوا له تاسې وو (له انبياوو، او بوځي تاسې په همغه سمه صافه لاره) او رجوع وکړي په رحمت سره پر تاسې باندې، او الله ښه عالم دی (په پټو او ښکاره وو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعنې د الله تعالى اراده د دې احکامو له ارشاد څخه هم دا ده، چې تاسې ته د حلالو او حرامو حال معلوم شي، او د پخوانيو انبياوو لاره در په برخه شي، لکه ابراهيم عليه السلام او نورو او مغفرت ستاسې په برخه کړي، او الله جل جلاله ته ستاسې مصالح او نور ګرد حالات پوره څرګند دي، او د الله جل جلاله په هر حکم او تدبير کې حکمت دی، که اوس د هغه د حکم اطاعت و نه کړئ؛ نو له هدايت څخه محرومېږئ، او د پخوانيو پيغمبرانو له سنتو څخه هم مخالفت کوئ ! او د الله تعالى له رحمت او مغفرت نه هم بې برخې کېږئ، (نو ځکه تاسې ته بيانوي هغه څه چې مخفي وو له تاسې نه چې هغه د وينځو احکام او حقوق، د محرماتو حدود، د مباحو د اکتساب قيود، اخروي وعد او وعيد، او د دنيوي ژوند د اصلاحاتو تحديد دی، څو چې تاسې ته د هغو انبياوو او صالحانو لاره در وښيي، چې پخوا له تاسې نه تېر شوي دي، او تاسې هغوی پسې اقتدا وکړئ !.

وَاللَّهُ يُرِيدُ أَن يَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَن تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ﴿٢٧﴾

او الله اراده لري چې رجوع وکړي په رحمت سره پر تاسې باندې، او اراده لري هغه کسان چې متابعت کوي د شهواتو (د نفس د آرزوګانو) د دې چې کاږه شئ تاسې (د حق له لارې څخه) په کږېدلو ډېرو لويو او لرې سره.

تفسير: يعنې دا مختلف قيود چې پخوا له دې نه تېر شول، له هغو څخه پر تاسې باندې رحمت فرمايل مطلوب دي، او هغه کسان چې په خپلو شهواتو کې اخته دي، دا غواړي چې تاسې له سمې لارې لرې ولوېږئ، يعنې د هغوی په شان تاسې د خپلو شهواتو اتباع وکړئ، او ګمراهان شئ.

يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْإِنسَانُ ضَعِيفًا ﴿٢٨﴾

اراده لري الله ددې چې سپک کړي (بار) له تاسې نه، او پيدا کړی شوی دی انسان ضعيف (کمزوری چې د درونډ بار طاقت نه لري).

تفسير: يعنې الله تعالى انسان ضعيف پيدا کړی دی، او الله تعالى ته ښه معلومه ده، چې انسان له خپلو شهواتو او مرغوباتو څخه تر کومه ځايه پورې صبر کولی شي، او له هغه څخه زيات صبر نشي کولی، نو ځکه يې په هر حکم کې د تخفيف لحاظ هم فرمايلی دی، داسې نه ده چې هر هغه شی چې د انسان لپاره مفيد ليدلی شوی دی، همغه يې ور په غاړه کړی دی، سخت وي که آسان، مثلا له ښځو څخه ځان ساتل او له شهوت نه صبر کول د انسان لپاره ډېر سخت وو، نو ځکه الله تعالى جل وعلا شأنه د ده د خواهش د پوره کولو لپاره جائزې طريقې ور وښوولې، چې په هغو سره خپل مطلب حاصل کړی شي، او داسې يې نه دي فرمايلي چې: انسان د شهوت له سر ته رسولو څخه بيخي منع کړی شوی دی، حق تعالى په خپل رحمت سره په شريعت کې تنګي نه ده فرمايلې، چې خلق حلال پر ېږدي، او د حرامو په لوري وځغلي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَأْكُلُوٓاْ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ

اې هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعني اې مؤمنانو !) مه خورئ تاسې ! مالونه د يو بل په منځونو خپلو كې په ناروا سره ! مګر (خورئ يې) كه وي دا (مالونه چې خورئ يې اموال د) تجارت (چې صادر وي) په خوښى سره له تاسو نه.

تفسير: مطلب دا دى چې هيڅا لره د هيڅا مال په ناحقه سره خوړل مثلا په رشوت، دروغ ويلو، ټګى او غلا كولو (يا په قمار يا په غصب، يا په ناحقه دعوى، يا په فاسدو عقودو او نورو) سره بيخي روا نه دي، هو ! كه سوداګري يا بيع او شراء د جانبينو په خوښې سره وشي، نو په دې كې هيڅ حرج نشته، او له دې مال څخه خوړل روا دي !.

وَلَا تَقْتُلُوٓاْ أَنفُسَكُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٢٩﴾

او مه وژنئ تاسې سره ځانونه خپل (يعني يو بل، يا مه كوئ تاسې هغه كار چې ستاسې د هلاك سبب وي) بېشكه چې الله دى پر تاسې باندې ډېر مهربان.

تفسير: يعنې په خپلو منځونو كې يو له بله سره مه وژنئ، بېشكه چې الله تعالى پر تاسې باندې ډېر مهربان دى، چې د بل چا په مال او ځان باندې له بې سببه تصرف كولو څخه يې منع فرمايلې ده، او تاسې ته يې داسې احكام درليږلي دي، چې په هغو كې بيخي ستاسې ښېګڼه او خير دى.

وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَٰنًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾

او هر څوك چې وكړي دغه (تېر منهيات) په تېرېدلو سره له حقه او ظلم (تعدې) سره، نو ژر به مونږ داخل كړو دې اور (د دوزخ) ته، او دي دا (د دوزخ اور ته د دوى ننه ايستل) پر الله باندې ډېر آسان.

تفسير: يعنې هر څوك چې له ظلمه او تيري څخه لاس نه اخلي، بلكه په ناحقه سره د نورو مالونه خوري، يا په ظلم سره بل څوك وژني، نو د ده د هستوګنې ځاى دوزخ دى، او د هسې ظالمانو په اور كې اچول الله ته څه سختي نه لري، بلكه بيخي سهل او آسان دي، نو اوس دې څوك داسې ګمان نه كوي، چې مونږ خو مسلمانان يو، نو څرنګه به په دوزخ كې لوېږو؟ الله تعالى مالك او مختار دى، او هيڅوك دې له عدل او انصاف څخه نشي اړولى.

إِن تَجْتَنِبُواْ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُم مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾

كه ځان وساتئ تاسې له لويو د (هغو) ګناهونو څخه چې منع كولى شئ تاسې له هغو نه؛ نو لرې به كړو مونږ له تاسې نه (صغيره) ګناهونه ستاسې، او ننه به باسو مونږ تاسې په ځاى د ننوتلو ډېر ښه كې (چې جنت دى).

تفسير: هغه څوك چې له كبيره وو ګناهونو څخه ځان وساتي، چې د هغو ذكر اوس تېر شو (لكه رشوت) د بل چا د مال غصب، سرقه، په ظلم سره د بل چا وژل، او نور) نو د هغه به ګرد صغيره معاصي بخښل كيږي.

په دې آيت كې څو خبرې بحث طلبي دي، مګر د ګردو اصل هم دا دى چې د دې آيت عمده او اصلي مطلب معلوم شي، تر څو په هغه سره د ګردو امورو پوهېدل آسان شي.

«معتزله» او د دوی نور ملګري په سرسري ډول سره د دې آيت په مضمون باندې داسې پوهيدلي دي: «که له کبيره وو ګناهونو ځنې ځان وژغوئ (وساتئ) يعنې يوه کبيره ګناه هم ونه کړئ، نو بيا که يواځې صغيره ګناه هر څومره وکړئ! هغه به ضرور دربخښل کيږي، او که له صغائرو سره کبيره هم يوه يا دوه شاملې شي، نو بيا يې معافي ممکنه نه ده، بلکه د ګردو سزاوې خامخا در رسيږي».

«اهل سنت» وايي چې: «په دې دواړو صورتونو کې الله تعالى ته د معافى او مؤاخذې اختيار بيخي محقق دی»، نو په اول صورت کې د معافى لزوم او په بل صورت کې د مؤاخذې وجوب د معتزله وو بد فهمي او ناپوهي ده، او په دی آيت کريمه باندی دمعتزله و داستدلال په ځواب کي ځينى علماء داسي وايي: «د شرط له انتفاء ځنې د مشروط انتفاء کوم ضروري امر له سره نه دی».

ځينې داسې وايي چې: «د «کبائر» له دې لفظه چې په دې آيت کې مذکور دی، أکبر الکبائر يعنې خاص شرک مراد دی، او د کبائر د لفظ د جمعې راوړلو سبب د شرک د انواعو تعدد مراد دی».

مګر مونږ له هغو ټولو څخه تېرېږو، او يواځې د همدې آيت داسې محققه او عمده معنى بيانوو چې د محققينو له ارشاد او قواعدو سره مطابقه وي، نو په غور يې واورئ:

دا خو ښکاره خبره ده چې د ﴿إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ﴾ الآيه ـ ارشاد چې دلته موجود دی، او د ﴿الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ﴾ ارشاد چې د (۲۷) جزء د «النجم» سورت په (۳۲) آيت (۱) رکوع کې موجود دی، د دواړو ارشاداتو مطلب يو شی دی، او يواځې په لفظونو کې يې لږ څه فرق سره شته، «عن ابن عباس رضي الله تعالى عنه قال: ما رأيت شيئا أشبه باللمم مما قال أبو هريرة عن النبي صلى الله عليه وسلم: إن الله كتب على ابن آدم حظه من الزنا، أدرك ذلك لا محالة، فزنى العين النظر، وزنى اللسان المنطق، والنفس تتمنى وتشتهي، والفرج يصدق ذلك و يكذبه. انتهى»، د پوهېدلو په شرط له دې حديث څخه د دې دواړو پخوانيو آيتونو د واقعي او تحقيقي مطلب پوره پته ولګېده، مونږ د توضيح په غرض د ذکر شوي حديث خلاصه ليکو، عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې: «د (لمم) لفظ چې په (النجم) کې راغلی او د هغه د معافى وعده شوې ده، د هغه د تعيين او تحقيق په نسبت مونږ د ابو هريره رضي الله تعالى عنـه د حديث څخه بهتر کوم بل شی نه دی معلوم، چې خلاصه يې داده، چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: الله تعالى د بني آدم په ذمه باندې د زنا کومه برخه چې مقرره فرمايلې ده، هغه هرو مرو ده ته رسيدونکې ده، نو د زنا په فعل کې د سترګو برخه ليدل دي، او د ژبې برخه د هغو خبرو ويل دي چې د زنا د فعل مقدمات او اسباب پيدا کوي، او د نفس حصه دا ده چې د زنا تمنا او د هغه غوښتنه کوي، مګر د زنا د فعل تحقق او د هغه بطلان اصلا د فرجينو په عمل پورې موقوف دی، يعنې که د فرجينو ځنې د زنا صدور محقق شو، نو د سترګو، ژبې، او نفس او د نورو ګردو په زنا کې واقع کېدل محقق شول.

که د ټولو وسائلو د شتوالي سره د فرجينو فعل متحقق نشي، بلکه له «زنا» ځنې يې «توبه» او اجتناب په نصيب شي، نو اوس د زنا هغه ګرد وسائط د مغفرت لايق شول، يعنې کله چې د فرجينو زنا کول باطل شو، ګواکې د دوی ماهيت قلب شوی: د ګناه په ځای عبادت وګرځېد، مثلا يو سړی د غلا په نيت تر مسجد پورې ورسېده، مګر په مسجد او په عين موقع کې منتبه او ويښ شو، او له غلا يې توبه وايسته، او ګرده شپه يې د الله تعالى په عبادت کې تېره کړه، نو ښکاره ده هغه ورتګ چې د غلا وسيله په نظر راته؛ اوس همغه د توبې وسيله او د لمانځه سبب وګرځېد.

نو د ابو هريره رضي الله عنه د دې حديث له اورېدلو څخه عبد الله بن عباس رضي الله عنه وپوهېد، چې «لمم» هغه خبرې دي چې په اصل کې لويه ګناه نه ده، مګر د ګناه د سبب کېدلو لامله ګناه ګرځي.

نو د آیت مطلب به داسې شي: هغه کسان چې له لویو او ښکاره وو ګناهونو څخه ځانونه ژغوري (ساتي) خو (لمم) ورځنې صادرېږي، مګر د لویې او اصلي ګناه له صدور څخه پخوا دوی له خپل قصور څخه تائب او مجتنب کېږي، نو اوس لکه چې ابن عباس رضي الله عنه د ابو هریره رضي الله عنه د حدیث په اساس د (النجم) د سورت د آیت په مطلب باندې پوهېدلی دی؛ مونږ لره هم ښایي چې همغه معنی د ابن عباس رضي الله عنه له ارشاده سره سم د «النساء» د سورت د آیت په مطلب کې هم بې له تکلفه واخلو.

وروسته له هغه (الحمد لله) نه مونږ ته د دې خبرې ضرورت پاتې کېږي چې د دې آیت په توضیح کې د صغیرې ګناه او د کبیرې ګناه مختلف تفسیرونه نقل کړو، او نه به راسره د معتزله وو د استدلال د ځواب ورکول څه فکر وي، د سیئاتو د تکفیر وجه او د جنت د دخول سبب آسان او له قواعدو سره سم په لاس راځي، او د اجتناب معنی هم ظاهرېږي، او نورې ګردې ورې خبرې ان شاء الله تعالی په لږ تدبر سره حل کېږي.

د دواړو ذکر شویو آیتونو خلاصه د حدیث له ارشاد او د ابن عباس رضي الله تعالی عنه له بیان سره سم داسې شوه: «هغه کسان چې خپل ځانونه له هسې ګناهونو څخه ژغوري (ساتي) او د هغو د ارتکاب څخه خپل نفسونه ساتي؛ چې د ګناهونو په سلسله کې مقصود او لویه ګڼل کېږي؛ نو د هغه اجتناب او ژغورنې (ساتنې) په وجه سره د دوی هغه بد کار چې د کومې لویې ګناه د حصول په طمعه یې کړی وي؛ معافېږي، او د ﴿وَاَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَاْوٰى﴾ لـه ارشاد سره سم دا کسان پـه جنت کې داخلېږي، ولې په واقع کې مطلقا صغائر په حسناتو سره بخښل کېږي، کما قال الله تعالی: ﴿اِنَّ الْحَسَنٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّاٰتِ ذٰلِكَ ذِكْرٰى لِلذّٰكِرِيْنَ﴾.

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ

او ارمان مه کوئ تاسې د هغه شي چې غوره ګرځولی دی الله په هغه شي سره ځینې له تاسې پر ځینو نورو.

تفسیر: یعنې حق تعالی چې چاته پر بل چا په کوم صفت کې شرافت، فضیلت، اختصاص او امتیاز عنایت فرمایي، نو تاسې د هغه هوس او حرص مه کوئ !، چې د هغه دې نه وي، زما دې وي، ځکه دا هم ګواکې همغسې دی، چې د چا په خاص مال او ځان باندې له کوم سببه منګولې خښې کړئ ! چې د هغه حرمت اوس تېر شو، او هم له دې څخه ستاسې په منځو کې حسد او بغض پیدا کېږي، او د الله تعالی له حکمت څخه هم مخالفت لازمېږي.

ځینو ښځو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې عرض وکړ چې: «څه سبب دی چې په هر ځای کې الله تعالی نارینه وو ته خطاب فرمایي، او هغوی باندې حکمونه کوي، او د ښځو ذکر نه کېږي، او په میراث کې نارینه ته دوه برخې ورکولی شي؟» په دې آیت کې د دغو ګردو پوښتنو ځواب ورکړ شوی دی.

لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ وَسْـَٔلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴿۳۲﴾

شته نارینه وو لره نصیب (برخه، مقرره) په سبب د هغه عمل چې کړی وي دوی، او شته ښځو لره نصیب (برخه مقرره) په سبب د هغه عمل چې کړی وي دوی، او سوال وکړئ تاسې له الله نه د فضل (او مهرباني) د ده، بېشکه چې الله دی پر هر شي ښه عالم (ډېر دانا).

تفسیر: یعنې هر یوه ته د هغه د عمل بدل پوره ورسېږي، او په هغه کې هیڅ قسم کمی نه کېږي، چې چا ته د شکایت موقع پاتې نه شي، هو ! خبره بله ده چې الله تعالی سم له خپل حکمت او رحمت سره چا ته چې خاصه لویې او فضیلت عنایت کړي، نو د هغه په نسبت حرص او شکایت کول بیځایه هوس دی.

هو ! كه د خپل عمل په معاوضه نور زيات ثواب او انعام وغواړئ؛ دا بهتره او مناسبه ده، او هيڅ تاوان او خرابي په كې نشته، كه څوك د فضل طالب وي، نو ده ته لازم دي، چې د عمل په وسيله دې د هغه طلب وكړي !، او د حسد او تمنا له پلوه دې د فضل طالب نشي ! او الله تعالى ته هر شي پوره معلوم دى، او د هر يو شي درجه او د هغه استحقاق ډېر ښه ورڅرګند (ورښكاره) دى، او له هر يوه سره د هغه د شان سره مناسبه معامله كوي، نو كه چاته الله جل جلاله فضيلت ور په برخه كوي، دا عطا يې بيخي د علم او حكمت سره سمه ده، او هيچا ته نه ښايي چې د خپلې ناپوهى له امله د هغه په نسبت څه انديښنه وكړي.

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ۚ وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿٣٣﴾

او لپاره د هر يوه (له نارينه وو او ښځو) ګرځولي دي مونږ وارثان (چې واخلي خپلې برخې) له هغه (ماله) چې پريښى وي مور او پلار او نورو اقاربو (خپلوانو، نو مه يې وركوئ پرديو ته) او هغه كسان چې غوټه شوي دي قسمونه ستاسې (په دوستۍ د دوى) نو وركړئ نصيب (برخه) د دوى بېشكه چې الله دى پر هر شي باندې ښه خبردار.

**تفسير:** اى مسلمانانو ! مونږ ستاسې د هر يوه لپاره: نارينه وي كه ښځه، له هغه مال څخې چې مور او پلار او خپلوانو پريښى دى؛ وارثان ګرځولي دي، او هيڅوك ورڅخې بې برخې ګرځول شوي نه دي، او له هغو خلقو سره چې ستاسې معاهده شوې ده، هغوى ته برخې يې خامخا وروړسوئ ! الله تعالى ته ښه معلومه ده، چې وارثانو ته څومره برخې وركړى شي؟ او هغو ته چې معاهده ورسره شوې ده، څه وركړى شي؟ او څمونږ دا احكام څوك عملي كوي؟ او څوك ترې غاړه غړوي؟

**فائده:** ډېرو خلقو ځان ځانته په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې ايمان راوړى وو، او كورنۍ او نور خپلوان يې همغسې كافران پاتې شوي وو، نو په دې وخت كې رسول الله مبارك دوه دوه مسلمانان سره ورونه او ملګري كړل، او هم دوى دواړه به يو د بل وارث كېدل، كله چې د دوى خپلوان هم مسلمانان شول، نو دا آيت نازل شو چې ميراث د اقرباوو او خپلوانو حق دى، پاتې شول هغه ايماني ورونه نو هغوى ته ميراث نه ور رسيږي.

هو ! په ژوندانه كې له هغوى سره ښه سلوك لازم دي، او كه د مرګ په وخت كې هغوى ته څه وصيت وكړئ، ښه او مناسب دى، مګر په ميراث كې دوى هيڅ برخه نه لري.

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ وَبِمَا أَنْفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ۚ

سړي حاكمان (مقرر شوي) دي پر ښځو باندې په سبب د دې چې فضيلت وركړى دى الله ځينې د دوى ته پر ځينو نورو باندې، او په سبب د دې چې نفقه (لګښت) كوي دوى (پر دغو ښځو) له مالونو خپلو.

**تفسير:** په دې آيت كې د نارينه او د ښځې درجې راښيي چې د نارينه درجه د ښځې له درجې څخه لوړه ده، د درجو د فرق لامله كوم فرق چې په احكامو كې وي، هغه بيخي له حكمت سره سم او د رعايت كولو وړ دى، ښځه او نارينه د حكمت له قاعدې سره سم له سره برابر بېدى نه شي، د ښځو دا غوښتنه بيخي بېځايه ده، خلاصه دا چې الله تعالى نارينه پر ښځو باندې په دوه وو وجهو سره حاكم او د حال كتونكى ګرځولى دى:

(۱): لويه او موهوبه وجه داده چې: الله تعالى په اصل كې ځينو ته پر ځينو نورو يعنې نارينه وو ته پر ښځو باندې په علم او عمل سره (چې دا دواړه د ګردو كمالاتو مدار دي) فضيلت عطا فرمايلې دى، چې د هغو تشريح په احاديثو كې شته، (يعنې په عقل، علم، صبر، حلم، پوهې، عصوبت، سهم، اذان، اقامت، جمع، جماعت، امامت، جمعه، خطبه، اعياد، عزت، شرافت، امارت، خلافت، نبوت، وحي، قوت، جهاد، عطا، سخا، حزم، عزم، او نورو سره الله تعالى نارينه ته پر ښځو باندې فضيلت او لويي ور عطا كړېده).

(۲): كسبي وجه دا ده چې نارينه پر ښځو باندې خپل مال صرفوي، او د مهر، خوړو كاليو او د نورو ضرورياتو تكفل كوي، مطلب دا دى چې ښځو لره ښايي چې د نارينه حكمونه ومني.

فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ۚ

نو نيكى ښځې هغه دي چې ، حكم منونكې دي (د مېړونو خپلو) ساتونكي دي په غياب د مېړونو (خپلو كې د ځانونو خپلو او د خپلو مېړونو د كورونو، مالونو، او اولادونو) په سبب د هغه چې ساتلي دي الله (دوى ته له حقوقو پر مېړونو).

تفسير: يعنې هغه ښځې چې نېكې دي، دوى د خپلو مېړونو اطاعت كوي، او سم د الله تعالى له حكمه د خپل مېړه په غياب كې د هغه په خوښې او رضا خپل ځان، او د مېړه د مال او اولاد حفاظت كوي، او پخپل ځان او د مېړه په مال او اولاد او نورو كې هيڅ ډول خيانت نه كوي.

وَالّٰتِىْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ

او هغه ښځې چې ويرېږئ تاسې له سركشى (بد ګزرانى) د دوى نه، نو نصيحت وكړئ دوى ته، او پرېږدئ تاسې دوى په ځاى د خوب كې (كه په نصيحت سمې نه شوې) او ووهئ تاسې دوى (كه په بېلتون هم سمې نه شوې).

تفسير: يعنې كه كومه ښځه له خپل مېړه سره بد ګزراني وكړي، نو ښايي (چې مېړه دې دغه ښځه د ښېښتنانو په حقونو او تعظيم) په ژبه وپوهوي، چې نور دې هسې نه كوي، كه يې ونه منله، نو بيا دې په همغه خونه (كور) كې په ګوښې (يواځې) بستره كې پرېږدي، او كه په دې هم سمه نه شوه، نو داسې دې ووهي، چې د دې په وجود كې د وهلو اثر پيدا نشي، يا يې هډوكي مات نشي، د هر تقصير لپاره يوه درجه وي، نو سم له هغې سره د هغې د تأديب او تنبيه اجازه شته، چې دهغې درې درجې په ترتيب سره په آيت كې مذكورې دي، وهل وروستنى درجه ده، په معمولي او سرسري قصور باندې دې نه وهي، هو ! كه قصور يې زيات وي، نو بيا يې په وهلو كې هيڅ حرج نشته، او څومره چې مناسب وګڼي هغومره دې ووهي، مګر د دې خبرې لحاظ په كار دى، چې هډوكي يې مات نشي، او داسې يو پرهار ورته ونه رسيږي، چې د هغه اثر باقي پاتې شي.

فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿۳۴﴾

نو كه اطاعت يې وكړ (غاړه يې كېښوده) تاسو ته نو مه لټوئ تاسې پر دوى باندې لاره (د ضرر او اذيت) بېشكه الله دى ډېر پورته، ډېر لوى (له ټولو اشياوو).

تفسير: يعنې كه هغه ښځې ستاسې په نصيحت يا بيلتون (جدايى) يا تأديب يا وهلو سمې شوې، او له نافرمانى څخې يې لاس واخيست، نو تاسې هم لاس ترې واخلئ، او خامخا د دوى په پړ كولو پسې مه ګرځئ ! او له الله څخه وويرېږئ !

بېشکه الله جل جلاله پر تاسې ټولو غالب او په ګردو باندې حاکم دی، مه د ښځو په معاملو کې هرو مرو له بد ګمانی څخې کار اخلئ ! او مه په لږ قصور باندې دوی ته سخته سزا ور کوئ ! بلکه د هر قصور لپاره یو حد او اندازه ده، او د ښځو په تأدیب کې وهل وروستنۍ درجه لري.

وَإِنۡ خِفۡتُمۡ شِقَاقَ بَيۡنِهِمَا فَٱبۡعَثُواْ حَكَمٗا مِّنۡ أَهۡلِهِۦ وَحَكَمٗا مِّنۡ أَهۡلِهَآ

او که وویرېږئ تاسې له مخالفت څخه په منځ د مېړه او ښځې کې؛ نو ور ولېږئ (مقرر کړئ تاسې) یو منصف له خپلوانو د دې سړي او بل منصف له خپلوانو د دې ښځې نه.

تفسیر: یعنې ای مسلمانانو ! که تاسې ته اندېښنه وي چې په مېړه (خاوند) او ښځې کې ضد او مخالفت دی، او دوی پخپله جګړه نشي پرېکولی، نو تاسې ته ښايي چې یو منصف د مېړه له خپلوانو نه، او یو منصف د ښځې له خپلوانو څخه مقرر کړئ ! او د فیصلې لپاره یې زوجینو ته ولېږئ ! ځکه چې اقاربو ته به د دوی نور حالات هم معلوم وي، او له دوی څخې د خیر غوښتلو امید هم ډېر کاوه شي، دا دواړه منصفان به د حالاتو تحقیقات کوي، او د هر چا چې هومره قصور وي؛ هغه به پوهوي، او د دوی په منځ کې به د موافقت فضا پیدا کوي.

إِن يُرِيدَآ إِصۡلَٰحٗا يُوَفِّقِ ٱللَّهُ بَيۡنَهُمَآۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرٗا ۝٣٥

که اراده لري دغه (زوجین یا حکمین) د اصلاح (او جوړښت) نو موافقت به پیدا کړي الله د دغو (زوجینو) په منځ کې، بېشکه الله دی ښه عالم (د زوجینو په مصالحو هم) ښه خبردار (د حکمینو په مقاصدو هم).

تفسیر: یعنې که دواړه منصفان د زوجینو په منځ کې د اصلاح قصد کوي، نو الله جل جلاله د دوی د ښه نیت او کوښښ لامله د زوجینو په منځ کې موافقت پیدا کوي، بېشکه چې الله تعالی ته د ګردو شیانو علم شته، د نزاع د لرې کولو او د اتفاق د حصول اسباب او کیفیات ګرد هغه ته ښه معلوم دي، نو ځکه د زوجینو د نزاع په لرې کېدو به هیڅ سختي نه پېښېږي ان شاء الله تعالی.

وَٱعۡبُدُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُشۡرِكُواْ بِهِۦ شَيۡـٔٗاۖ

او عبادت کوئ تاسې د الله ! او مه شریکوئ تاسې له ده سره هیڅ شی !

تفسیر: په الله تعالی باندې ایمان ولرئ، او د آخرت د ثواب په امید یې عبادت او بندګي وکړئ، فخر (ویاړ) او ریاء او ښودنې سره مال ورکول هم شرک دی، مګر په لږه درجه.

وَبِٱلۡوَٰلِدَيۡنِ إِحۡسَٰنٗا وَبِذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱلۡجَارِ ذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡجَارِ ٱلۡجُنُبِ وَٱلصَّاحِبِ بِٱلۡجَنۢبِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُكُمۡۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ مَن كَانَ مُخۡتَالٗا فَخُورًا ۝٣٦

او (نیکي کوئ) له مور او پلار سره په نیکي کولو او (نیکي کوئ !) له خپلوانو سره، او (نیکي کوئ !) یتیمانو سره او (نیکي کوئ !) له مسکینانو سره، او (نیکي کوئ !) له همسایه ګانو سره چې قریب وي (په نسب یا په همسایګۍ کې)، او (نیکي کوئ !) له همسایه سره چې بعید وي

(په نسب یا په همسایګۍ کې) او (نیکي کوئ !) له هغه ملګري سره چې په څنګ کې وي او (نیکي کوئ !) له مسافر سره، او (نیکي کوئ !) له هغو (وینځو، مریو) سره چې مالکان وي (ور لره) ستاسې لاسونه ستاسې، بېشکه چې الله محبت نه کوي هغه چا سره چې وي کبر کوونکی، ډېر فخر کوونکی.

تفسیر: د یتیمانو، ښځو، وارثانو، او زوجینو حقوق او له دوی سره حسن معامله یې بیان کړه، اوس داسې ارشاد فرمایي چې: د هر یوه حق د هغوی د مرتبو په اندازه او د خپلوۍ او احتیاج په تناسب ادا کړئ !، له ګردو څخه پخوا د الله تعالی حق دی، بیا د مور او پلار، بیا درجه په درجه د نورو خپلوانو او حاجتمندانو.

قریب او غیر قریب همسایه (ګاونډي) څخه به نسبي یا مکاني قرب او بعد مقصود وي، په نسبي قرب کې دا مطلب دی، چې د خپلوانو همسایه حق له پردي همسایه څخه زیات دی، او په مکاني قرب کې به دا مدعا وي چې: د نږدې همسایه حق د لرې همسایه له حق څخه زیات دی، یعنې چې په لرې فاصله کې اوسیږي.

په ﴿وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ﴾ کې د سفر، حضر، او د کاروبار رفیقان او شریکان او د یوه بادار (آقا) دوه نوکران او د یوه استاذ دوه شاګردان، دوست، شاګرد، او نور ټول داخل دي، په مسافرۍ کې مېلمه او غیر مېلمه دواړه راغلل، او مملوک برسېره پر مریې او وینځې نورو حیواناتو ته هم شامل دی.

په آخر کې یې وفرمایل: د هغو په مزاج کې چې تکبر (لویي) خودپسندي وي، هغه بل هیڅوک له خپل ځان سره برابر نه ګڼي، او په خپل مال باندې مغرور، او په عیش کې مشغول وي، نو هسې کسان چې دا حقوق نه اداء کوي، له دوی څخه احتراز وکړئ، او ځانونه ترې وژغورئ (بچ کړئ !).

الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُونَ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ ۗ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُهِينًا ﴿٣٧﴾

هغه کسان چې بخیلي کوي دوی او امر کوي (نورو) خلقو ته (هم) په بخیلۍ (شومتیا) سره، او پټوي دوی هغه شی چې ورکړی دی دوی ته الله له مهربانۍ خپلې، او تیار کړی دی مونږ کافرانو ته عذاب سپکوونکی.

تفسیر: یعنې الله تعالی هغه متکبر سړی نه خوښوي، چې بخیلي کوي او خپل مال او دالله جل جلاله ورکړی علم له خلقو څخه پټوي، او هیچا ته نفع نه رسوي، او په قول او عمل سره نورو ته هم د بخیلۍ ترغیب ورکوي، او د دې کافرانو لپاره مونږ د ذلت عذاب تیار کړی دی.

فائده: دا آیت د یهودانو په حق کې نازل شوی دی، چې د في سبیل الله د خرڅ په صرفولو کې یې هم پخپله بخیلي کوله، او هم به یې مسلمانان ترې منع کول، او د محمد صلی الله علیه وسلم اوصاف او د اسلام د حقانیت هغه آیتونه یې چې په «تورات» کې موجود وو؛ پټول، نو مسلمانانو لره له دې نه احتراز او ځان ساتنه پکار ده.

وَالَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ رِئَاءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ وَمَنْ يَكُنِ الشَّيْطَانُ لَهُ قَرِينًا فَسَاءَ قَرِينًا ﴿٣٨﴾

او هغه کسان چې صرفوي دوی مالونه خپل لپاره د ښودنې خلقو ته، او نه لري ایمان په الله باندې، او نه په ورځې آخرې (د قیامت) باندې، او هر څوک چې وي شیطان د ده ملګری؛ نو بد ملګری دی (دا شیطان).

تفسير: او دا متکبران هغه کسان دي؛ چې خپل مالونه نورو خلقو ته د ځان د ښوولو لپاره صرفوي، يعني د الله تعالی لپاره له صرفولو څخه دې پخپله هم بخيلي کوي، او نورو ته هم د بخيلۍ ترغيب ورکوي، ليکن خلقو ته د ځان ورښوولو لپاره خپل مالونه صرفوي، دوی نه پر الله جل جلاله باندې ايمان لري، او نه په قيامت باندې باور لري؛ چې د حق تعالی د رضا حصول او د اخروي ثواب تحصيل د دوی مقصود وي، او د الله تعالی په دربار کې خوښ او مقبول کار دا دی، چې دا مال هغه حقدارانو ته ورکړ شي، چې د هغوی ذکر وشو، او په ورکولو کې يې د الله تعالی خوښي او د آخرت د ثواب توقع وي.

له دې ځنې ښکاره شوه چې د الله تعالی په لاره کې همغسې چې بخل کول خراب کار دی، هم داسې رياکاري او د خلقو د ښوولو لپاره مال لګول هم خراب کار دی، او داسې کار همغه کسان کوي، چې د دوی رفيق شيطان وي، چې دوی پر هسې کارونو لمسوي، او تياروي يې.

وَمَا ذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿۳۹﴾

او څه نقصان به وو په دې کفارو (باندې) که ايمان راوړی وای دوی په الله او ورځې آخرې (د قيامت) باندې، او صرف کړی وای دوی ځينې د هغه شي چې ورکړی دی دوی لره الله، او دی الله په (ټولو اعمالو د) دوی باندې (هم) ښه عالم.

تفسير: يعنې د کافرانو په دې کې هيڅ نقصان نه وو که دوی د کفر په ځای پر الله تعالی او د قيامت په ورځ باندې ايمان راوړی وای، او د بخل او ريا په ځای يې د الله تعالی په لاره کې خپل مال صرفولی، بلکه بيخي د دوی نفع وه، ضرر او زيان خو په دې کې دی چې دوی يې اوس غوره کوي، او الله تعالی ته معلوم دي چې دوی يې په څه؟ او په کوم نيت کوي؟ د همغه عوض به هغوی ته ورکاوه شي.

په پخواني آيت ﴿وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ﴾ کې د مال نسبت د هغوی په لوري شوی وو، اوس د ﴿وَاَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ﴾ په فرمايلو کې داسې يوه لطيفه اشاره ده، چې هغو کسانو دغه مال د خپل ځان بللی، په هر څه يې چې زړه غوارې لګوي يې، دوی ته دا مناسب وو، چې هغه مال يې د الله تعالی مال ګڼلی، او همغه لاره کې يې لګولی چې الله جل جلاله له حکمه سره سم وای.

اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۴۰﴾

بېشکه چې الله نه کوي ظلم په اندازې د يوې ذرې، او که وي دا (ذره) نيکي (نو) دوه چنده به کړي هغه (نيکي) او ور به کړي (محسن ته الله) له نزده خپله ثواب ډېر.

تفسير: يعني الله تعالی د هيچا حق د يوې ذرې په اندازه هم نه ضايع کوي، نو په دې کافرانو باندې چې عذاب مسلط کيږي؛ عين انصاف دی، او د دوی د بد عملی بدل دی، او که د يوې ذرې په اندازه څوک نيکي ولري نو «اضعافا مضاعفه ـ څو چنده» به د هغه اجر مومي، او پاک الله به له خپل لوري عظيم ثواب د انعام په طور هم ور عنايت کوي.

فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا ﴿۴۱﴾

نو څرنګه (حال) به وي په هغه وخت کې چې راولو مونږ له هر يوه (پخواني) امت څخه يو شاهد (د دوی له انبياوو څخه) او راولو مونږ تا (ای محمده !) پر دغه (محمدي امت باندې) شاهد (احوال ويونکی).

تفسير: يعنې د دې کافرانو به څرنګه بد حال وي، کله چې مونږ له هر امت او هر قوم څخه هسې شاهدان راولو چې د دوی د حالاتو بيان کوونکی او د دوی د واقعي معاملاتو ظاهر کوونکی دی.

له دې نه مراد د هر امت نبي او د هر عهد صالح او معتبر خلق دي، چې دوی به د قيامت په ورځ کې د نافرمانی او د فرمان منونکو فرمان منل بيانوي، او په ګردو حالاتو باندې به شاهدي لولي، نو ای محمده ! صلی الله عليه وسلم تا به هم پر دوی يعنې ستاسې پر امت لکه د نورو انبياوو عليهم السلام په شان احوال ښوونکی او شاهدي لوستونکی دروو.

او داسې احتمال هم لري چې د «هؤلاء» اشاره د پخوانيو انبياوو عليهم السلام يا د پورته ذکر شويو کافرانو په لوري وي.

که انبياء عليهم السلام مراد شي؛ نو د هغوی پر صداقت باندې هغه وخت شاهدي لولي چې د دوی امتيان د دوی تکذيب کوي.

که کفار ترې مطلب شي نو مدعا به يې داسې کيږي: همغسې چې پخواني انبياء عليهم السلام د خپلو امتونو د کفارو او د فساقو په فسق باندې شاهدي لولي، ته به هم ای محمده ! صلی الله عليه وسلم د هغوی پر بد عملی باندې شاهد کيږې، چې له دې شهادت څخه به د دوی خرابي او بدي لا ښه محققه کيږي.

يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوَّىٰ بِهِمُ الْأَرْضُ وَلَا يَكْتُمُونَ اللَّهَ حَدِيثًا ﴿٤٢﴾

په دغه ورځ کې به آرزو کوي هغه کسان چې کافران شوي وو او نافرماني يې کړې وه له رسوله، دا چې کاش که هموراه کړی شوي وای پر دوی باندې ځمکه، او نه به پټوي دوی له الله څخه هيڅ خبره.

تفسير: يعنې په همغه ورځ کې چې له هر امت څخه به د دوی د حالاتو بيان کوونکي وبللی شي، نو کافران او نافرمانان به داسې تمنا کوي، چې کاشکې مونږ له ځمکې سره برابر او په خاورو کې ګډ او بيخي فنا وای، او نن پيدا نه وای، چې له مونږ سره حساب او کتاب نه کېدی !، دا خلق به هيڅ يوه خبره له الله تعالی څخه نشي پټولی، او د ذرې ذرې حساب به له دوی څخه اخيستل کيږي.

په آخر کې بيا مسلمانانو ته صريح خطاب فرمايي او مخصوصا د لمانځه په نسبت چې: «له ګردو عباداتو څخه اولی، اعلی، او افضل دی، او په شريعت کې چې هومره د هغه اهتمام شوی، او د هغه ارکان، شرايط، آداب او نور مفصل ښودلی شوي دي، د نورو عباداتو په دې اندازه سره اهتمام نه دی شوی» نو دلمانځه په اړه يې د دوه وو خبرو تاکيد فرمايلی دی، چې د لمانځه د متعلقه امورو جسم او روح دی، او پر نفس باندې ډېر اهم او شاق او درانه ښکاري:

(۱): دا چې د نشې په حالت کې لمانځه ته مه نږدې کيږئ ! تر څو د هغو الفاظو په معانيو ښه وپوهيږئ چې ستاسې له خولو څخه وځي.

(۲): د جنابت په حال کې هم له لمانځه څخه لرې اوسئ ! تر هغه پورې چې ولامبئ ! او خپل ځانونه په غسل سره ښه پاک کړئ ! ځکه چې په لمانځه کې دوه امره مهتم بالشأن دي، چې يو يې حضور او خشوع دی، او بل يې طهارت، نظافت، او د لمانځه د متعلقه وو امورو په منځ کې هم دا دوه امره پر نفس اهم او درانده هم دي،

نشه له خشوع او حضور څخه مخالف دی، او جنابت له طهارت او نظافت سره منافي دی، ددې خاص تاکید او تقیید د ارشاد له فرمایلو څخه دوه نفعې هم معلومیږي:

(اول): څرنګه چې د پاسنیو ډېرو ذکر شویو احکامو ادا (لکه حقوق، معاملات، بدني او مالي عبادات) او له بخل، ریاء، تکبر څخه ځان ژغورل (ساتل) پر نفس باندې سخت دي، نو د دې سختی علاج راښیي، یعنې که لمونځونه د هغو له ظاهري او باطني شرائطوا او آدابو سره سم اداء کړئ، نو د دې پاسنیو ګردو اوامرو او عباداتو کې سهولت او رغبت او له ګردو منهیاتو او معاصیو څخه نفرت پیدا کیږي.

(دویم): هر هغه څوک چې د لمانځه په کولو کې اهتمام او د هغه التزام کوي؛ هغه ته به د نورو مالي او بدني احکامو په تعمیل کې هم آساني ورپېښیږي، او هر هغه څوک چې په نورو احکامو کې بې پروایي کوي؛ له هغه څخه د لمانځه په کولو کې هم قصور بعید نه دی، والله أعلم.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَقۡرَبُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَأَنتُمۡ سُكَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَعۡلَمُواْ مَا تَقُولُونَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِي سَبِيلٍ حَتَّىٰ تَغۡتَسِلُواْۚ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) مه نږدې کېږئ تاسې لمانځه ته حال دا چې تاسې مست یئ (له نشې) تر هغه پورې چې پوه شئ تاسې پر هغه شي چې (یې) وایئ تاسې، او نه په داسې حال کې چې تاسې جنب اوسئ، مګر په هغه حال کې چې اوسئ تېرودونکي د لارې (نو لمانځه ته مه نږدې کیږئ) تر هغه پورې چې تاسې غسل وکړئ.

تفسیر: د کفارو او د کتابیانو دوه عیبونه په خاص ډول سره ذکر شول:

(۱): په الله تعالی باندې ایمان نه راوړل.

(۲): خپل مال د الله تعالی په لار کې نه لګول، بلکه خلقو ته د ځان ورښوولو او د خپل عزت او پت خرګندولو لپاره یې لګاوه، او ښکاره ده چې د لومړنی خرابی او عیب منشأ، خو د علم نقصان او د جهل غلبه ده، او د وروستی خرابی علت او سبب هوا، هوس، او ځان خوښی ده، چې له هغې څخه دا راښکاره شوه چې د ګمراهی سببونه دوه دي:

(اول): جهل چې په هغه کې د حق او باطل تمیز بیخي نشي کېدی.

(۲) نفسي غوښتنه او شهوت، چې د هغو لامله د حق او باطل له تمیزه سره؛ له حق سره سم عمل نشي کولی، ځکه چې له شهوت سره ملکي صفات ضعیف او بهیمي قواوې قوي کیږي.

وَإِن كُنتُم مَّرۡضَىٰٓ أَوۡ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوۡ جَآءَ أَحَدٞ مِّنكُم مِّنَ ٱلۡغَآئِطِ أَوۡ لَٰمَسۡتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمۡ تَجِدُواْ مَآءٗ فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدٗا طَيِّبٗا فَٱمۡسَحُواْ بِوُجُوهِكُمۡ وَأَيۡدِيكُمۡۗ

او که وئ تاسې مریضان (رنځوران) یا په سفر باندې (په حالت د بې اودسی یا جنابت کې) یا راشي یو له تاسې له بیدیا (له بولو) نه، یا جماع وکړئ تاسې ښځو سره نو ونه مومئ تاسې اوبه (یا یې نشئ استعمالولی) نو اراده وکړئ تاسې مخ د ځمکې (خاورې) پاکې ته، نو مسحه وکړئ تاسې په مخونو خپلو او په (دواړو) لاسو خپلو (تر څنګلو پورې).

**تفسير:** يعني دجنابت په حالت کې دې لمونځ نه کوي، بلکه وروسته له غسل او لمبلو څخه دې ادا کړ شي !، دا حکم هلته دی چې کوم عذر نه وي، که يو داسې عذر پېښ شي، چې د اوبو استعمال د هغه لامله ممکن نه وي، او ترې معذور شي، او د طهارت حصول ضروري وي، نو په داسې وخت کې تيمم وهل کافي دي، د اوبو د استعمال معذوريت درې صورتونه لري:

(۱): ناروغي چې د اوبو استعمال ورته ضرر پېښوي.

(۲): چې په سفر کې وي، او دومره اوبه ورسره وي، چې يواځې خپله ګزاره پرې کولی شي، او که اودس پرې وکړي، تنده به ورته ضرر ورسوي، او نورې اوبه له ده څخې لرې وي.

(۳): دا چې اوبه بيخي موجودې نه وي، د اوبو د نشتوالي په تقدير يې د طهارت د ضرورت دوه صورته ښودلي دي:

(اول): له بولو او غائطو څخه وروسته د اوداسه د ضرورت په وخت کې.

(دويم): له مجامعت څخې وروسته د غسل او د لمبلو ضرروت په وخت کې.

**فائده:** د تيمم صورت دا دی چې پاکه ځمکه باندې دې دواړه لاسونه ووهي !، بيا دې پر خپل ټول مخ او لاسونو باندې په ښه ډول سره مسحه کړي ! خاوره طاهره ده، او د ځينو شيانو لپاره د اوبو په شان پاکوونکې هم ده، مثلا: موزه، بوټ، ماسې، چاړه، هنداره او نور.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٤٣﴾

بېشکه الله دی ښه عفو کوونکی (چې داسې سختي يې را آسانه کړه) ښه مغفرت کوونکی (د تقصيراتو).

**تفسير:** يعني الله تعالی د ضرورت په وخت کې د تيمم اجازه راکړې ده، او خاوره يې د اوبو قائم مقام درولې ده، ځکه چې هغه سهولت او معافي ورکوونکی او د بندګانو د خطاوو معافوونکی ذات دی، او د خپلو بندګانو نفع او هوسايي (آساني) خوښوي، چې له دې څخې دا هم ښکاره شوه، چې په لمانځه کې د نشې په حالت کې چې د يوه شي په ځای بل شی لوستلی شوی وو، هغه يې هم معاف کړی دی.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿٤٤﴾
وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَىٰ بِاللَّهِ نَصِيرًا ﴿٤٥﴾

آيا نه دي کتلي تا (نه يې خبر له حاله د) هغو کسانو چې ورکړی شوی ده دوی ته څه برخه له کتابه، چې پيري (اخلي) دوی ضلالت (ګمراهي په عوض د هدايت کې)، او اراده لري دوی د دې: چې ورکه کړئ تاسې (هم) لاره (د حق)، او الله ښه عالم دی په دښمنانو ستاسې (هم، نو خبروي مو پرې چې ترې په څنګ شئ !) او کافي (بس) دی الله ولي (دوست حمايت کوونکی ستاسې) او کافي (بس) دی الله مددګار (ستاسې).

**تفسير:** يهودانو ته له کتاب څخې څه برخه ورکړی شوې ده، يعنې د هغه د الفاظو د لوستلو برخه ورکړی شوې ده، او د عمل کولو برخه چې اصلي مقصود ده، نه ده ورکړی شوې، او ګمراهي اخلي يعنې د (آخر الزمان نبي صلی الله عليه وسلم) له حالاتو او اوصافو څخې به يې د دنيايي عزت او رشوت لامله خلق نه خبرول، او پټول يې، او عمدا

به يې ترې انکار کاوه، او غوښتل يې چې مسلمانان هم له دين څخه واړوي؛ چې ګمراهان شي، او الله تعالى تاسې ته ارشاد فرمايي چې اى مسلمانانو! ستاسې دښمنان داسې ښه معلوم دي، چې تاسې ته نه دي معلوم، نو د الله تعالى په دې ارشاد باندې اطمينان ولرئ! او له دوى نه مو خپل ځانونه وژغورئ (محفوظ کړئ!) الله تعالى تاسې ته د نفعې رسولو او د زيان څخه د ساتلو لپاره کافي دى، نو ځکه له دښمنانو څخه هيڅ ډول انديښنې مه کوئ! او په دين باندې قائم اوسئ!.

مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِى الدِّيْنِ ۭ

ځينې له هغو کسانو چې يهودان شوي دي اړوي دوى خبرې (د شريعت او محمدي اوصاف) له ځايو د دې (خبرو) څخه او وايي دغه (يهودان) واورېدله مونږ (وينا ستا) سر غړونه مو وکړه د (حکم ستا)، او (وايي يهودان)واوره (ته) په داسې حال کې چې نه يې اورولى شوى، او (وايي يهودان لفظ د) «راعنا» په تاوولو د ژبو خپلو، او په عيب ويلو سره په دين کې.

تفسير: په يهودانو کې داسې خلق هم دي، چې هغه «تورات» چې د الله تعالى له خوا نازل شوى دى؛ له خپله ځايه اړوي، يعنې لفظي او معنوي تحريفونه په کې کوي، ﴿وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا﴾ او وايي وامو ورېده سر غړونه کوو)، يعنې کله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يهودانو ته کوم حکم اوراوه، نو دوى به په ځواب کې وويل: وامو ورېده! يعنې ومو منلو، خو ورو به يې وويل چې: مونږ نه دى منلى، يعنې يواځې مونږ په غوږ اورېدلى دى، او په زړه مو هغه نه دى منلى.

(﴿وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ﴾ او وايي يهودان: واوره په داسې حال کې چې نه يې اورولى شوى) يعنې کله چې يهودان له محمد صلى الله عليه وسلم سره مخاطبه کوي، نو وايي: «واوره! دروا دې نه اورول شي!» يعنې داسې خبرې کوي، چې دوه معناګانې لري، که د يوې معنى په اعتبار دعا يا تعظيم وي، نو د بلې معنى په لحاظ ښېرا او تحقير هم کېدى شي، لکه چې دا خبره په ظاهره کې د خير دعا ده، مطلب دا چې: «ته تل غالب او معزز اوسې، هيڅکله دې تاته کومه بده او مخالفه خبره وانه اورولى شي!»، او په زړو کې به يې هسې نيت کاوه چې ته کوڼ شې! (العياذ بالله).

(﴿وَّرَاعِنَا﴾ او وايي لفظ «راعنا» يعنې کله چې يهودان د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کې راتلل، نو «راعنا» به يې هم ويل، چې د هغه معناوې هم دوه دي، يوه ښه او بله خرابه، چې د هغه بيان په اول جزء د البقره سورت په (۱۰۴) آيت (۱۳) رکوع کې شوى دى.

ښه معنى يې داده چې: «ته څمونږ رعايت وکړه! او د شفقت نظر پر مونږ وفرمايه! چې ستا پر مطلب باندې ښه وپوهېږو، او د څه شي پوښتنه کول چې غواړو د هغه پوښتنه وکړى شو.

او بده معنى يې داده چې د يهوديانو په ژبه دا د تحقير کلمه وه، يا به يې په ژوولې سره «راعينا» ويل، چې د هغه معنى «څمونږ شپون» دى، او دا د هغوى شرارت وو، ځکه چې هغوى ډېر ښه پوهېدل چې موسى عليه السلام او نورو انبياوو عليهم السلام هم پسونه څر ته بيولې وو.

(﴿لَيًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ﴾ په تاوولو د ژبو خپلو...) يعنې يهودانو به دا کلمې پخپلو خبرو کې سره ګډولې، او په داسې يو ډول سره به يې ويلې، چې د اورېدونکي فکر به يې ښې معنى ته اړاوه، او د هغو بدې معنى ته به له سره د چا ذهن نه منتقل کېده، او پخپلو زړونو کې به يې همغه خرابه معنى قصدوله، او بيا به يې پر ده باندې داسې عيب لګاوه، چې که دا سړى په رښتيا سره نبي واى؛ نو څمونږ په دې فرېب به هرو مرو (خامخا) پوهېده، نو الله تعالى د دوى دا فريبونه مسلمانانو ته په ښه ډول سره څرګند کړل.

وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَقْوَمَ وَلَٰكِنْ لَعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿۴۶﴾

او كه بېشكه دوى ويلي واى: واورېده مونږ (وينا ستا) او ومانه (حكم ستا په بدل د «عصينا» كې) او (كه دوى ويلي واى) واوره (بې له «غير مسمع») او نظر لره پر مونږ (په بدل د «راعنا» كې) نو خامخا به خير وو دوى ته، او ډېره سمه (وينا)، وليكن لري كړي دي دوى الله (له خپله رحمته) په سبب د كفر د دوى، پس نه راوړي ايمان (له دغو يهودانو) مګر لږ خلق.

تفسير: حق تعالى د يهودانو د دغو دريو مذمومو اقوالو له بيان كولو څخه وروسته اوس د ملامتيا او د هدايت په ډول ارشاد فرمايي: چې كه يهودانو د﴿وَعَصَيْنَا﴾ په ځاى ﴿وَأَطَعْنَا﴾ او د﴿وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ﴾ په عوض يې يوائې ﴿وَاسْمَعْ﴾ او د ﴿وَرَاعِنَا﴾ په ځاى ﴿وَانْظُرْنَا﴾ ويلي؛ نو دا به د دوى په حق كې بهتر وو، او دا خبره به په ځاى او سمه وه، او هسې بېهودګي او شرارت ته به ځاى نه وو پاتې، چې له پاسنيو كلماتو څخه يهودان په خپلو زړونو كې بدې معناګانې اخيستلې، ليكن څرنګه چې الله تعالى دوى د خپل كفر په سبب له خپل رحمت او هدايت څخه بې برخې ګرځولي دي، نو ځكه دوى په سمه لاره باندې نه راځي، او په ګټورو خبرو باندې نه پوهيږي، او ايمان نه راوړي، مګر لږ خلق دي چې له دغو شرارتونو او خباثتونو څخه په څنګ او د الله جل جلاله له لعنت ځنې محفوظ پاتې دي، لكه (عبد الله بن سلام) او د هغه نور ملګري رضي الله تعالى عنهم.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَطْمِسَ وُجُوهًا فَنَرُدَّهَا عَلَىٰ أَدْبَارِهَا أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا أَصْحَابَ السَّبْتِ ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ مَفْعُولًا ﴿۴۷﴾

اى هغو كسانو چې وركړى شوى دى دوى ته كتاب ! (اى كتابيانو !) ايمان راوړئ تاسې ! په هغه (قرآن) چې نازل كړى دى مونږ، حال دا چې تصديق كوونكى دى د هغه كتاب چې تاسې سره دى، پخوا له هغه چې هوار كړو مونږ ډېر مخونه، نو وګرځوو دا (هوار مخونه) په شاګانو د دوى، يا پخوا لـه دې چې لعنت وكړو پر دوى لكه چې لعنت كړى وو مونږ په اصحابو (د ورځې) د شنبې، او دى امر (حكم) د الله واقع كېدونكى (خامخا).

تفسير: «اى اهل كتابو ! ايمان راوړئ ! په هغه «قرآن» چې احكام يې له (تورات) سره موافق او د هغه مصدق دى، ايمان راوړئ ! پخوا له هغه څخه چې مونږ ستاسې د مخ علامې يعنې سترګې، پوزې، او نور بدل كړو.

مطلب دا چې كه تاسې ايمان را نه وړئ، نو ستاسې څېرې بدلوو، او بيا يې د شا په لوري اړوو، يعنې ستاسې مخ له چيت پيت كولو څخه وروسته د څټ په لوري او ستاسې څټ د مخ په لوري اړوو، (يا دا چې) ايمان راوړئ ! پخوا له دې نه چې مونږ ډېر مخونه محوه كړو، او د څټونو په شان يوه تخته يې وګرځوو»، يا به د شنبې د ورځې د مسخ شويو خلقو په شان تاسې هم مسخ كړو، او له تاسې ځنې به ځناوران جوړ كړو.

د﴿أَصْحَابَ السَّبْتِ﴾ قصه د «الأعراف» په سورت كې مذكوره ده.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَىٰ إِثْمًا عَظِيمًا ﴿۴۸﴾

بېشكه چې الله نه بخښي دا چې شريك ونيولى شي له (الله سره) او بخښي هغه (ګناه) چې ښكته وي له شر كه (لويه وي كه وړه) هغه چاته چې اراده وفرمايي (د مغفرت يې)، او هر هغه

څوک چې شریک ونیسي له الله سره نو په تحقیق ویې تړل (په الله) دروغ لوی (او ویې کړه) ګناه ډېره لویه.

**تفسیر:** یعنې مشرک ته له سره مغفرت نشته، بلکه دوزخ یې دائمي سزا ده، هو ! له شرک څخه ښکته چې کوم صغیره ګناهونه دي یا کبیره، هغه ګرد د مغفرت وړ دي، الله تعالی د هر چا دمغفرت اراده چې وفرمايي؛ د هغه صغیره او کبیره ګناهونه سره له څه عذاب ورکولو یا بې له عذاب ورکولو معافوي، او دا د دې په لوري اشاره ده: څرنګه چې یهودان په کفر او شرک کې مبتلا دي؛ نو دوی دې د مغفرت توقع او هیله نه کوي !.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ اَنْفُسَهُمْ ۭ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَاۗءُ وَلَا يُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ۝۴۹

آیا نه دي کتلي تا (نه یې خبر له حاله د) هغو کسانو چې پاک ګڼي دوی ځانونه خپل (او په واقع کې داسې نه دي) بلکه (خاص) الله پاکوي هغه څوک چې اراده وفرمايي (د پاکۍ یې)، او ظلم به ونه کړی شي پر دوی په اندازه د یوه نري تار (هم).

**تفسیر:** یعنې یهودان سره له دومره خرابیو بیا هم خپل ځانونه پاک او مقدس ګڼي، تر دې چې خپل ځانونه «أبناء الله» او «أحباء الله» هم بولي - چې بېخي چټې او لغوه خبره ده، بلکه د هر چا په نسبت چې الله تعالی اراده وفرمايي هغه مقدس او پاکیزه کوي، او د یهودانو په تشه وینا سره هیڅ نه کیږي، د دغو متکبرانو په ډله باندې به لږ ظلم هم نه کیږي، یعنې دغه ډله به د خپلو بدو عملونو له سببه په لوی عذاب اخته کیږي، او په دوی باندې به هیڅکله په ناحقه سره عذاب نه واردیږي.

**فائده:** یهودانو چې خوسي (سخي) ته عبادت کولو، او (عُزیر علیه السلام) ته یې د الله تعالی ځوی ویل، کله چې هغوی دا آیت ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ﴾ الآیه - واورېده، نو یې ویل چې: «مونږ خو مشرکان نه یو، بلکه د الله تعالی خاص بندګان او د انبیاوو ځامن یو، او پیغمبري څمونږ میراث دی»، نو الله تعالی د دوی دغې لویې او ځانمنې په مقابل کې دا آیت نازل کړ.

(فتیل هغې نرۍ پردې ته وایي چې د تارونو په شان د خرماوو د زړو په چاودنو کې وي).

اُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ۭ وَكَفٰى بِهٖٓ اِثْمًا مُّبِيْنًا ۝۵۰

وګوره ای (محمده !) چې څرنګه تړي دوی په الله باندې دروغ او (بس) دي دا (دروغ) ګناه ښکاره.

**تفسیر:** یعنې څومره د تعجب خبره ده چې په الله تعالی باندې دا ډول تهمتونه کوي، او د کفر او شرک له ارتکاب سره خپلو ځانونو ته د الله تعالی دوستان وایي، او د الله تعالی په نزد د مقبولیت مدعیان دي، او داسې سخت تهمت کول د دوی د صریح ګناهګار کېدلو لپاره بېخي کافي دي.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ وَيَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰٓؤُلَاۗءِ اَهْدٰى مِنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا سَبِيْلًا ۝۵۱

آیا نه دي کتلي تا هغو کسانو ته چې ورکړی شوی دی دوی ته څه برخه له کتاب څخه، ایمان راوړي دوی په بت او په شیطان او وایي دوی په حق د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي: دا (کفار) ښه لاره موندونکي دي له هغو کسانو څخه چې مؤمنان دي، له جهته د لارې.

تفسیر: په دې آیت کې هم د یهودانو د شرارت او خباثت اظهار دی، خبره داده کله چې د یهودانو په زړونو کې د محمد صلی الله علیه وسلم عداوت زیات شو، نو د مکې معظمې د مشرکانو سره متفق شول، او د مشرکانو د خوښې او د ضرورت له مخې یې د بتانو تعظیم وکړ، او ویې ویل چې: «ستاسې دین د مسلمانانو له دین څخه بهتر دی»، او د دې کار سبب یواځې حسد وو، او غوښتل یې چې نبوت او دیني ریاست پرته له مونږ څخې بل چاته ولې ورکړی شوی دی؟ نو په دې مناسبت الله تعالی په دوی باندې الزام اړوي، او په دې آیتونو کې هم دا خبرې مذکورې دي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا ﴿۵۲﴾

دا (حکم کوونکي په غوره والي د کفارو) هغه کسان دي چې لعنت کړی دی (په دوی باندې) الله، او هر هغه څوک چې لعنت (پرې) وکړي الله، نو له سره نه مومې (ته) ده لره کوم مددګار (د عذاب دفع کوونکی).

تفسیر: یعنې دا خلق سره له دې چې اهل کتاب دي، د نفساني اغراضو له سببه یې د بتانو تعظیم وکړ، او د کفر طریقه یې د اسلامي طریقې څخه افضله ښکاره کړه، نو په دوی باندې د الله تعالی لعنت دی، او په هر چا باندې چې الله تعالی لعنت وکړي، د هغه حامي او مددګار په دنیا او آخرت کې هیڅوک نشي کېدی.

أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا ﴿۵۳﴾

آیا شته یهودانو ته څه برخه له ملکه (له سلطنته؟ یعنې نشته ! او که شي) نو په دغه وخت کې به ور نکړي دوی خلقو ته (په اندازه د) نقیر.

تفسیر: یهودانو داسې خیال کاوه چې نبوت او د دین سرداري څمونږ میراث دی، او یواځې مونږ د هغه لیاقت لرو، نو څکه به یې د عربي نبي صلی الله علیه وسلم د منلو او متابعت کولو څخه عار کولو، او یو له بل سره به یې ویل، بالآخر حکومت او پاچاهي مونږ ته رسیږي، که د څو ورځو له مخې دا مشرتوب نورو ته هم ور ورسیږي؛ هیڅ پروا نشته، نو په دې نسبت دا آیت نازل شو، چې مطلب یې دادی «آیا یهودانو ته په سلطنت کې څه برخه شته؟ یعنې له سره دوی په سلطنت کې څه برخه نه لري، که دوی ته سلطنت ته وروړسیږي؛ نو خلقو لره د یوې ذرې په اندازه هم فائده نه رسوي، یعنې دوی داسې بخیلان دي چې پخپله پاچاهی کې هم فقیرانو ته یوه ذره شی نه ورکوي، (حال دا چې له سلطنت سره عطاء سخاء او ورکړه لازمه ده).

(نقیر هغه داغ ته وایي چې د خورما د زړي په شا باندې وي).

أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۖ فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُم مُّلْكًا عَظِيمًا ﴿۵۴﴾

بلکه آیا حسد کوي دغه (یهودان) خلقو سره (له محمد او اصحابو سره یې) پر هغه شي چې ورکړی دی هغو ته الله له فضل (احسان، رحمت) خپل، نو په تحقیق ورکړی دی مونږ اولادې د ابراهیم ته کتاب (تورات، زبور، انجیل) او حکمت (شرعي علوم، ژورې خبرې) او ورکړی دی مونږ دوی ته سلطنت ډېر لوی.

تفسیر: یعنې آیا که په محمد صلی الله علیه وسلم او د دوی په اصحابو باندې د الله تعالی (د نصرت، عزت، عظمت، سیادت، او د نورو) فضائلو او انعامونو له لیدلو څخه له ډېرې رخې او حسده مري؛ نو دا بیخي د دوی

لېونتوب او ناپوهي ده، ځکه چې مونږ د ابراهيم عليه السلام کورنۍ ته (چې اسحاق، اسماعيل، يعقوب، يوسف، موسی، داود، سليمان، عيسی، محمد صلی الله عليه وسلم او نور انبياء عليهم السلام دي) کتاب، علم، حکمت، او عظيم سلطنت عنايت کړی دی، نو بيا يهودان د څه له مخې د محمد رسول الله صلی الله عليه وآله وصحبه وسلم په نبوت او عزت باندې حسد او له دوی څخه انکار کوي؟ ځکه چې اوس هم نبوت او عزت د ابراهيم عليه السلام په کورنۍ کې دی.

فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ؕ وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيْرًا ﴿۵۵﴾

نو ځينې له دغو يهودانو هغه دي چې ايمان يې راوړی دی په محمد، او ځينې له دغو (يهودانو) هغه دي چې مخ يې اړولی دی له محمد څخه، او بس دی دوزخ (د کفارو د عذاب لپاره) ځوښ وهونکی.

تفسير: يعني د ابراهيم عليه السلام کورنۍ ته الله تعالی تل تر تله بهتري او فضيلت ورکړی دی، او محمد صلی الله عليه وسلم هم له همغې کورنۍ څخه دی، نو که څوک بې سببه يوازې د کينې او حسد لامله محمد صلی الله عليه وسلم نه مني؛ نو دهغه د سوځولو لپاره د دوزخ لمبې وهونکی اور بس او کافي دی.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِيْهِمْ نَارًا ؕ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ ؕ

بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي په آيتونو ځمونږ ژر به ننباسو مونږ دوی اور ته (چې په کې سوځولي شي)، هر کله چې پاخه شي (وسوځېږي) پوستکي د دوی (په اور کې نو) بدلوو مونږ دوی ته پوستکي غير له هغو، لپاره د دې چې وڅکي دوی (تل تر تله نوی نوی) عذاب.

تفسير: يعني د کافرانو په عذاب کې د نقصان او کمي د نه راتللو له سببه؛ د دوی د پوستکي له سوځېدو څخه وروسته دوی ته بل پوستکي ورآغوندو، او د هغه په عوض يې ور شين کوو، مطلب دا چې کافران به تل تر تله او يو شان په عذابونو کې آخته او مبتلا وي.

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۵۶﴾

بېشکه چې الله دی ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) لوی حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعني بېشکه الله تعالی ډېر زبر دست او غالب دی، د کافرانو په هسې سزا ورکولو کې الله تعالی جل جلاله ته هيڅ کومه سختي نشته، او د حکمت خاوند دی، چې کافرانو ته خپل د حکمت سره سمه دا سزا ورکوي.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ لَهُمْ فِيْهَآ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۫ وَّنُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيْلًا ﴿۵۷﴾

او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) زر به ننه باسو مونږ دوی په (هغو) جنتونو کې چې بهيږي له لاندې د (مانيو او ونو) د دوی ويالې، همېشه به وي دوی په دغو

(جنتونو) كې تل (بې انتهاء بلا انقطاع)، وي به دوی ته په دې جنتونو كې ښځې پاكې كړی شوې (له ټولو ناپاكيو څخه) او ننه به باسو مونږ دوی په ګڼو سيورو (په دائمي نعمت او راحت) كې.

تفسير: يعني مؤمنان به تل تر تله په جنت كې اوسيږي، او دوی ته به هسې ښايسته ښځې ور په برخه كيږي، چې له حيض، نفاس، او نورو دنيوي ككړتياوو څنې به بيخي پاكې، صافې، او ستره وي، دوی به په ډېرو ګڼو سيورو كې داخل كړو، چې د لمر له تودوخې او نورو څنې به بيخي محفوظ وي.

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ أَنْ تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ

بېشكه الله امر كوي په تاسې (ای مؤمنانو !) د دې چې وسپارئ تاسې امانتونه اهل د اماناتو ته، او كله چې حكم كوئ تاسې (ای قاضيانو ! ای حاكمانو !) په منځ د خلقو كې نو (امر كوي الله چې) حكم وكړئ په انصاف سره !.

تفسير: په يهودانو كې دا عادت وو چې په امانتونو كې به يې خيانت كولو، او د خصوماتو په فيصلو كې به يې رشوتونه اخيستل، او په نورو اسبابو سره به يې د يوه پلو خاطر، لحاظ، او رعايت كولو، او د حق په خلاف به يې حكمونه كول، نو څكه مسلمانان له هسې چارو څنې ممنوع ګرځول شوي دي.

منقول دي چې د مكې شريفې د فتحې په ورځ رسول الله مبارك اراده درلوده (لرله) چې (بيت الله) شريف ته دننه ننوځي، د كعبې شريفې كلي ساتونكي (عثمان بن طلحة رضي الله تعالى عنه) د كعبې شريفې د كلي له وركولو څخه انكار وكړ، نو (علي رضي الله عنه) د ده له لاسه كلي (چابي) په زوره واخيسته، او ور يې پرانيست، كله چې د الله تعالى جل جلاله رسول صلى الله عليه وسلم د كعبې شريفې نه د باندې ووتلو، عباس رضي الله تعالى عنه وغوښتل چې دا د (بيت الله شريف) كلي (چابي) دې ماته راكړه شي !، دلته دا آيت نازل شو، او كلي (چابي) بېرته همغه (عثمان بن طلحة رضي الله تعالى عنه) ته وروسپارل شوه، «او تر نن ورځې پورې هغه كلي (چابي) همغې كورنۍ سره پاتې ده، عثمان بن طلحة رضي الله تعالى عنه به تل ويل: كه زه پوهېدی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم كلي (چابي) غواړي؛ نو كلي به مې ترې منع كړي نه وای».

إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُمْ بِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿٥٨﴾

بېشكه الله ښه پند دركوي تاسې ته په هغه سره (چې د امانتونو اداء او په عدل سره حكم كول دي)، بېشكه چې الله دی ښه اوريدونكی (د ټولو اقوالو)، ښه ليدونكی.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ ۖ

ای هغو كسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) حكم ومنئ تاسې د الله ! او حكم ومنئ تاسې د رسول (د الله) او (حكم ومنئ) د خاوندانو د حكم له تاسې (مسلمانانو يعنې حاكمانو او مشرانو !).

تفسير: په پخواني آيت كې يې قاضيانو او حاكمانو ته د عدل حكم وفرمايه، اوس نورو ته د حاكمانو او قاضيانو د حكم په متابعت كولو سره حكم وركولو كيږي، چې له دې څخه دا راښكاري چې د حكامو او قاضيانو حكم منل به هلته واجبيږي، چې دوی د حق اطاعت وكړي.

فائده: د اسلامي پاچا او د ده د وزيرانو، حاكمانو، قاضيانو، لښكري مشرانو او د نورو واكدارانو حكم منل ضروري دي، تر څو چې دوی د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له احكامو څنې مخالف كوم حكم ونه كړي، مګر

که د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صریحو احکامو په خلاف کوم حکم ورکوي؛ نو د دغه حکم منل له سره نه دي پکار !.

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

نو بیا که خلاف مو پیدا شو په یوه شي کې نو وګرځوئ تاسې (فیصله ددې کار) طرف د الله ته (د الله کتاب ته) او رسول ته (د رسول الله حدیث ته) که یئ تاسې چې (په اخلاص سره) ایمان لرئ تاسې په الله، او په ورځې آخرې (قیامت) باندې.

**تفسیر:** یعني که تاسې او د أولو الأمر په منځ کې کوم اختلافات پېښ شي، چې د حاکم دا حکم د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له حکمه سره موافق دی که مخالف؟ نو د الله جل جلاله کتاب او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سنتو ته رجوع وکړئ ! او د هغو له مخې د دې خبرې فیصله وکړئ ! چې آیا هغه حکم في الحقیقت د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له حکم سره موافق دی که مخالف؟ او هره هغه خبره چې محققه شي، نو ښایي چې هغه بالاتفاق مسلمه او معموله وګڼئ ! او ښایي چې اختلاف له منځه ورک کړئ ! که تاسې په الله تعالی او د قیامت په ورځې باندې له زړه نه ایمان لرئ، نو خامخا به د اختلاف په صورت کې د الله تعالی او د رسول الله مبارک د حکم په لوري رجوع وکړئ ! او د کتاب الله او رسول الله صلی الله علیه وسلم د سنت د حکم له مخالفت ځنې به خامخا ویرېږئ ! چې له دې ځنې دا حکم را ښرګند شو، هر هغه څوک چې د الله تعالی او د رسول الله مبارک له حکم څخه تښتي؛ مسلمان به نه وي، نو څکه که د دوو مسلمانانو په منځ کې کومه جګړه پېښه شي، او یو د دوی هغه بل ته ووایي: راځه چې شریعت ته لاړ شو، او دا بل ووایي چې: زه شریعت نه پیژنم (نستغفر الله) یا زه (نعوذ بالله) له شریعت سره څه کار نه لرم، نو هغه ته مونږ په یقین سره کافر ویلی شو.

ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٥٩﴾

دغه (رجوع الله او رسول الله ته) خیر (ډېر غوره دی تاسې ته له ناقصه فکر ستاسې) او دا (رجوع) ډېره ښه ده د عاقبت له جهته.

**تفسیر:** یعني خپل منازعات او اختلافات الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راجع کول، او د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم منل مفید دي، له دې نه چې پخپلو منځونو کې سره جګړې او شخړې (جنګونه) وکړئ ! یا له خپلې رایې سره سم کومه فیصله صادره کړئ، څکه چې د شریعت په لوري د رجوع کولو انجام بهتر دی.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿٦٠﴾

آیا نه دي کتلي تا هغو کسانو ته چې (ظاهري) دعوی کوي دوی چې بېشکه دوی ایمان راوړی دی په هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی تاته (ای محمده !) او په هغو (کتابونو) چې نازل کړی شوی دی پخوا له تا نه (ای محمده !)؛ اراده لري دوی چې وروړي (خصومت خپل) په طرف د شیطان (کعب بن أشرف) او په تحقیق حکم کړی شوی دی دوی ته چې له دغه طاغوت څخه انکار وکړي (ویې نه مني)، او اراده لري شیطان دا چې ګمراه کړي دوی په ګمراهی لرې سره (له حقه).

تفسیر: په (مدينې منورې) کې د يوه يهودي او د يوه منافق په منځ کې په کومه خبره باندې جګړه پېښه شوه، يهودي چې په رښتيا وو، ويې ويل: «راشه ! چې محمد ته لاړ شو !»، منافق چې په نا حقه وو ويې ويل: «راځه چې (کعب بن أشرف) ته لاړ شو !»، چې د يهودانو عالم او مشر وو، بالآخر دوی دواړه د رسول الله مبارک مخې ته حاضر شول، رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د جګړې د پېښې له اورېدلو څخه وروسته د يهودي حق ثابت کړ، کله چې دوی دواړه د رسول الله صلی الله عليه و سلم له حضوره د باندې ووتل، منافق وويل: «راځه ! چې عمر رضي الله عنه ته ولاړ شو، هره فيصله چې عمر رضي الله عنه وکړه همغه به سره ومنو !، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په فيصله راضي نشو، او قناعت يې ونه کړ.

اغلبا ده به هسې ګڼلې وي چې څرنګه زه د اسلام مدعي يم، نو خامخا به عمر رضي الله عنه د دې يهودي په مقابل کې څما رعايت کوي، نو عمر رضي الله عنه ته ولاړل، کله چې عمر رضي الله عنه دغه جګړه واورېده، او د يهودي له بيان څخه ورښکاره شوه چې دا جګړه د رسول الله مبارک حضور ته هم رسېدلې، او رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغې قضيې په نسبت خپله فيصله هم صادره کړېده، او د نبی صلی الله عليه وسلم له فيصلې سره سم په دغه جګړه کې هغه يهودي رښتينی او غالب پېژندل شوی دی، نو عمر رضي الله تعالی عنه دغه منافق وواژه، او ويې فرمايل: «څوک چې د داسې يو حقاني قاضي فيصله ونه مني، نو د هغه فيصله دې په دې ډول سره وکړه شي !»، د دې منافق مقتول وارث د رسول الله صلی الله عليه وسلم حضور ته راغی، او په عمر رضي الله تعالی عنه باندې يې د قتل دعوی دائره، او قسمونه يې ياد کړل، چې دې عمر رضی الله تعالی عنه ته د دې لامله تللی وو، چې ښايي هغه په دې معامله کې د دوی په منځ کې روغه او صلح وکړي، او داسې نه وو چې هغه د رسول الله مبارک له فيصلې څخه انکار او غاړه غړولې وه، نو دلته دا آيتونه نازل شول، او په دې آيتونو کې اصل حقيقت ښکاره کړی شو، او د عمر رضي الله تعالی عنه لقب «فاروق» وټاکل شو.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَىٰ مَا أَنزَلَ اللَّهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودًا ﴿٦١﴾

او کله چې وويل شي دې (منافقانو) ته راځئ ! طرف د (حکم د) هغه (کتاب) ته چې نازل کړی (رالېږلی) دی الله (يعني قرآن ته)، او طرف د (حکم د) رسول (د ده) ته (د جګړې د فيصلې لپاره) نو ګورې به ته منافقان چې ګرځي به له تا (له ډېرې دښمنی) په ګرځېدلو سره.

تفسیر: يعني که په کومه جګړه کې منافقانو ته وويل شي چې: «د هغه حکم په لوري راشئ !چې د الله تعالی له لوري نازل شوی دی، او د هغه د رسول په مخ کې خپلې جګړې وړاندې کړئ !» کله چې دوی ظاهرا د اسلام مدعيان دي، نو څکه په صاف ډول سره انکار نشي کولای، مګر ستاسې په حضور کې د راتللو او د الله جل جلاله د حکم له منلو څخه څانونه ژغوري، او ډېر ته ستنېږي، او غواړي چې په کوم چل او فرېب سره څان تري ګوښه کړي، او له رسول الله مبارک څخه پرته بل کوم ځای ته چې د دوی زړونه يې غواړي لاړ شي، او هلته خپلې جګړې فيصله کړي.

فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُم مُّصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَاءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ﴿٦٢﴾

نو څه به وي (حال د دوی) کله چې ورسيږي دوی ته کوم مصيبت (د منافق د وژلو غم) په سبب د هغو (ګناهونو) چې وړاندې لېږلې دي لاسونو د دوی (چې د رسول الله د حکم نه منل دي) بيا

به راشي دوی تاته (ای محمده !) چې قسمونه به خوري په الله چې اراده نه وه کړې مونږ (عمر ته په ورتلو) مګر د ښېګڼې (اصلاح) او موافقت (د جګړه کوونکو ـ نه مخالفت ستا).

تفسير: کله چې پر دوی باندې عذاب نازل شي، نو هلته به دا منافقان څه وکړی شي، پرته له دې چې د رسول الله مبارک په خدمت کې راشي، او قسمونه وخوري، چې مونږ د عمر رضي الله تعالى عنه خدمت ته یواځې د دې مقصد لپاره تللي وو، چې ښايي هغه څمونږ په منځ کې صلحه (روغه) وکړي، او څمونږ مقصود د رسول الله صلى الله عليه وسلم له ارشاد څخه ځان ژغورل یا غاړه غړول او اعراض نه وو.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللَّهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُل لَّهُمْ فِي أَنفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴿٦٣﴾

دغه (منافقان) هغه کسان دي چې معلوم دي الله ته هغه شی (هم) چې په زړونو د دوی کې دی، نو څنګ (تغافل) وکړه ! (مخ واړوه) له دوی څخه (او ناحقه معاذير «عذرونه» يې مه منه !) او پند ورکړه دوی ته او ووايه (ای محمده !) دوی ته په حق د نفسونو د دوی کې خبره بليغه (تأثيرناکه).

تفسير: يعنې د دوی نفاق او دروغ او نورې پلمې (تدبيرونه) ډېرې ښې ورته معلومې دي، نو اوس د الله تعالى پر حکم باندې اکتفاء او د منافقانو له خبرو څخه تغافل وفرمايه ! او د دوی په خبرو باندې هيڅ غوږ مه ږده ! مګر دوی ته په پند ورکولو او د خبرو په ورښوولو کې هيڅ تقصير مه فرمايه ! او د دوی له هدايت څخه مه نا اميده او مه مأيوس کېږه !.

وَمَا أَرْسَلْنَا مِن رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٤﴾

او نه دی لېږلی مونږ هيڅ رسول مګر (لېږلی مو دی) د دې لپاره چې حکم ومانه شي د ده په اذن (حکم) د الله سره، او که بېشکه دغه (منافقان) کله چې ظلم وکړي دوی پر ځانونو خپلو راغلي وی تاته، پس مغفرت غوښتی وی دوی له الله او مغفرت غوښتی وای دوی ته رسول (د الله هم)؛ نو خامخا به موندلی وو دوی الله ښه قبلوونکی د توبې ډېر رحم کوونکی.

تفسير: يعنې الله جل جلاله هر هغه رسول چې د خپلو بندګانو په لوري لېږي، نو په دې غرض يې لېږي، چې د الله جل جلاله له حکم سره سم ګرد بندګان د هغه خبرې و مني، نو دا ضروري وه چې دې خلقو هم د رسول الله مبارک ارشاد د زړه له کومې، بې تأمله لا له پخوا څخه منلی وی، او که له ګناه او خرابۍ کولو څخه وروسته هم ويښ او منتبه شوي وای، او له الله تعالى څخه يې معافي غوښتي وی، او رسول الله صلى الله عليه وسلم هم د دوی لپاره د معافۍ دعا کړې وی، نو الله تعالى به د دوی توبه قبوله کړي وی، مګر دوی داسې خراب کار وکړ، چې اول يې د (رسول الله) له حکم څخې چې هغه هم د الله تعالى په حکم وو؛ غاړه وغړوله، نو کله چې د هغه وبال پر دوی باندې ولوېد، بيا هم منتبه او تائب نشول، بلکه د دروغو په قسمونو يې لاسونه پورې کړل، او په بې ځايه تأويلاتو پسې ولوېدل، نو د داسې کسانو مغفرت به په څه ډول سره وشي؟

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾

پس قسم دی په رب ستا، چې نه مؤمنان کيږي دوی تر هغه پورې چې فيصله کوونکي او حَکَم کړي دوی تا په هغه جګړه کې چې پېښه شوې ده په منځ د دوی کې، بيا ونه مومي دوی په

نفسونو (زړونو) خپلو کې خپګان (تنګي ـ ناراضګي) له هغه شي چې حکم (فیصله) کړې وه تا، او (ویې) مني دوی په منلو سره «بې له جګړې په خوښی سره».

وَلَوْ اَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ اَنِ اقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَوِ اخْرُجُوْا مِنْ دِيَارِكُمْ مَّا فَعَلُوْهُ اِلَّا قَلِيْلٌ مِّنْهُمْ ۭ وَلَوْ اَنَّهُمْ فَعَلُوْا مَا يُوْعَظُوْنَ بِهٖ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَشَدَّ تَثْبِيْتًا ﴿٦٦﴾ وَّاِذًا لَّاٰتَيْنٰهُمْ مِّنْ لَّدُنَّآ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٦٧﴾ وَّلَهَدَيْنٰهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿٦٨﴾

او که په تحقیق مونږ فرض کړی وی پر دغو (مدعیانو د ایمان) دا چې مړه کړئ تاسې ځانونه خپل ! یا ووځئ تاسې له کورونو خپلو ! (لکه چې بني اسرائیلو ځانونه وژلي او وتلي وو) نو نه به وو کړی دوی هغه (قتل او جلا وطني) مګر لږو کسانو له دوی نه.

او که په تحقیق دوی کړی وی هغه کار چې پند ورکولی شو دوی ته په هغه سره؛ نو خامخا به وو دا کار خیر (ډېر غوره) دوی ته، او ډېر به کلک وو له جهته د محکموالي (د ایمان). او په دغه وخت کې به خامخا ورکړی وو مونږ دوی ته (خاص) له خپله درباره اجر (ثواب) ډېر لوی (جنت او نور). او خامخا به برابر کړي (بیولی) وو مونږ دوی لارې سمې ته (او رسېدل به خپل مقصود ته).

تفسیر: دوی وپوهوه ! کوم حکم چې مونږ د دوی په نسبت ورکړی دی، هغه یوائې د دوی د پند او خیر غوښتلو لپاره دی، نه د ځان د هلاکولو حکم دوی ته ورکړی شوی دی، او نه له وطن ځنې د جلا کېدلو، که دوی په دې سهل او آسانه حکمونو باندې ټک وکړي، نو نفاق به بیخي ورک شي، او دوی به خالص مسلمانان شي، مګر افسوس چې دوی نه پوهیږي، او موجوده حالت غنیمت نه ګڼي، چې په لږ اخلاص او ښه عمل سره دوی ته د دین او دنیا ښېګڼې ور په برخه کیږي.

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاۗءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿٦٩﴾

او هر څوک چې حکم ومني د الله او د رسول (د الله)؛ نو دغه کسان به له هغه چا سره وي (په جنت کې) چې انعام کړی دی الله پر دوی باندې، چې انبیاء دي، او صدیقان دي، او شهیدان دي، او صالحان دي، او ښه دي دغه کسان له جهته د رفاقته (چې ښه ملګري دي).

تفسیر: «نبي» هغه دی چې د الله جل جلاله «وحي» پرې راځي، یعنې پرښته ظاهرا د پاک الله پیغام ورته وایي، «صدیق» هغه دی چې هغه پیغام او احکام چې د الله تعالی له لوري رسولانو ته راځي؛ د ده زړه پخپله په هغه باندې شهادت ورکړي او پرته له چون و چرا څخه د هغه تصدیق وکړي.

«شهید» هغه دی چې د الله تعالی او انبیاوو علیهم السلام په احکامو خپل ځان په شهادت ورسوي، او تل ورته حاضر وي.

«صالح» او نېک بخت هغه دی چې له خرابو خبرو ځنې یې خپل نفس او بدن اصلاح او صفا کړی وي.

مطلب دا چې دا څلور واړه یاد شوي قسمونه د امت له نورو افرادو ځنې افضل دي، ځکه چې د دوی ګرد اقوال، افعال، او احوال له شرعي سره موافق دي، او پرته له دوی ځنې نور مسلمانان که څه هم له دوی سره په درجه کې برابر نه دي، خو که د الله تعالی او د پاک رسول په امر منلو کې مشغول وي، نو دا کسان به هم د همدوی په ذیل

کې راځي، او د دې حضراتو رفاقت د ډېرې ښېګڼې او د فضيلت خبره ده، او هيڅوک دې هغه حقير ونه ګڼي.
فائده: په دې آيت کې دې ته اشاره ده، هغه منافقين چې دهغوی ذکر شوی یا کيږي؛ له دې رفاقت او معيت څخه بې برخې دي.

ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ۝

دا (ملګرتيا) فضل (احسان، رحمت) د ی له (جانبه د) الله نه، او کافي دی الله ښه پوه (په ټولو نيتونو او عملونو هم).

تفسير: يعنې الله تعالى او دپاک رسول حکم منونکو ته د انبياوو (عليهم السلام) او صديقانو (رضي الله تعالى عنهم) او شهيدانو (رحمهم الله) او صالحانو (رحمهم الله) رفاقت ميسر کېدل د الله تعالى لوی انعام او د ده محض فضل دی، او د دوی داطاعت په عوض کې نه دی، نو له هغه څنې منافقان بيخي محروم دي، او الله کافي دی ښه پوهيدونکی او ښه خبر لرونکی، چې د هر مخلص او منافق احوال او د هر مطيع طاعت او د ده د طاعت اصلي استحقاق او د فضل مقدار مفصلا ور معلوم دی، نو اوس دې هيڅا ته د دې امورو د تفاصيلو له امله د الله جل جلاله د وعدې په پوره کېدلو کې څه انديښنه او خلجان پيدا نشي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ۝

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی (ای مؤمنانو !) واخلئ تاسې وسلې خپلې (یا ځان له کفارو وساتئ !او ورته هوښيار اوسئ !) بيا ووځئ تاسې (غزا ته) ډلې ډلې (جلا جلا فوځ) يا ووځئ تاسې ګرد سره يو ځای.

تفسير: دلته د «جهاد» ذکر شروع کيږي، يعني: «ای مسلمانانو ! د منافقانو کيفيت خو تاسې ته لا له پخوا څخه معلوم شوی دی، او ستاسې خير په دې کې دی، چې تاسې د خپلو ځانونو هر قسم مدافعه وکړئ، او له با خبرئ او احتياط څنې کار واخلئ ! اعم له دې نه چې دا کار د وسلې په قوت سره وي، که د تدبير يا د عقل او سامان په وسيله، او د دښمنانو د مقابلې لپاره له کوره د باندې ووځئ ! په متفرق صورت، يا د جمعيت په ډول، څنګه چې موقع وي.

وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ

او بېشکه څينې له تاسې خامخا هغه څوک دي چې خامخا تأخير به کوي (په تللو کې غزا ته).

تفسير: يعنې ای مسلمانانو ! ستاسې په جمعيت کې څينې هغسې کسان هم ننوتلي دي، چې «جهاد» ته په تللو کې ځنډ کوي، او ببرته ترې پاتې کيږي، او د الله جل جلاله د حکم تعميل نه کوي، بلکه دنيوي منافعو ته يې سترګې نيولي دي، او له دوی څخه مراد منافقان دي لکه (عبد الله بن أبي) او د هغه ملګري، چې دې خلقو په ښکاره سره اسلام منلی وو، مګر د دوی مقصود له دې خبرو څخه فقط دنيوي منافع وو، او د الله تعالى له امر منلو سره يې هيڅ ارتباط او علاقه نه وه.

فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ۝

نو که ورسيږي تاسې ته کوم مصيبت (لکه قتل يا هزيمت) نو وايي دا (متخلف منافق): په تحقيق انعام (فضل، احسان) کړی دی الله پر ما باندې ځکه چې نه وم (زه) له دوی سره حاضر (په جهاد کې).

فرمايي: وروسته د غزا له ورتللو به که مسلمانانو ته په «جهاد» کې کوم ربړ ورپېښېده، لکه چې زخميان يا شهيدان کېدل، يا به يې ماتې موندله، نو منافقان به ډېر خوشالېدل، او ويل به يې چې: د الله تعالى لوى فضل وو چې په جنګ کې مونږ له دوى سره يو ځاى نه وو، که نه ځمونږ هيڅ خير په کې نه وو، (الحمد لله) چې په ښه چم (چل) سره ترې خلاص شو.

وَلَئِنْ اَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوْلَنَّ كَاَنْ لَّمْ تَكُنْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهٗ مَوَدَّةٌ يّٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ مَعَهُمْ فَاَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿٧٣﴾

او که ورسيږي تاسې ته فضل (احسان، رحمت) له (طرفه د) الله (لکه فتح يا غنيمت) نو خامخا هرو مرو به وايي دا (متخلف منافق) ګواکې چې نه وه په منځ ستاسې او په منځ د ده کې هيڅ دوستي (او وايي به): اى کاشکې زه (هم) وى له دوى سره، نو بريالى شوى به وم په بري ډېر لوى سره (له غنائمو).

تفسير: يعنې که په مسلمانانو باندې د الله تعالى فضل وشي، لکه چې برى ومومي، يا د غنيمت ډېر مال لاس ته ورشي، نو منافقان ډېر خپه کيږي، لاسونه سره مښي (مروړي)، غاښونه چيچي او لکه د ښمنان د حسد د غلبې له کبله وايي: «هى ! د افسوس ځاى دى ! چې مونږ ولې له مسلمانانو سره په «جهاد» کې شريکان نه شو، او له دې لويې ولجې (غنيمت) او بري ځخه خوشې چټې بې برخې پاتې شو، که مونږ له مسلمانانو سره ملګرتوب کړې واى؛ نو زيات مال به مو په لاس راغلى وى»، يعنې منافقانو ته به يواځې په خپله محرومي باندې افسوس نه وي، بلکه له خپلې محرومۍ ځخه به زيات د مسلمانانو په بري باندې لا ډېر زيات د حسد په رنځ او اضطراب کې لوېږي، نو الله تعالى فرمايي:

فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ۭ وَمَنْ يُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ اَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿٧٤﴾

پس جنګ دې وکړي په لاره د الله کې هغه کسان چې خرڅوي دوى حيات دنيوي (ژوندون لږ خسيس) په آخرت، او هرڅوک چې جنګ وکړي په لاره د الله کې (د دين د ترقۍ لپاره) پس شهيد کړى شي، يا غالب (غازي او بريالى شي پر دښمن)؛ نو ژر به ورکړو مونږ ده ته اجر ډېر لوى.

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ۚ وَاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۚ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ نَصِيْرًا ﴿٧٥﴾

او څه شوي دى پر تاسې چې جنګ نه کوئ تاسې په لاره د الله کې (د دين د ترقۍ لپاره) او په (خلاصولو) د ضعيفانو کې چې سړي دي، او ښځې دي، او هلکان دي، هغه کسان چې وايي دوى: «اى ربه ځمونږه ! وباسه مونږه له دې کلي (د مکې) څخه ! چې ظالمان دي اوسيدونکي د هغې، او وګرځوه مونږ ته له خپله درباره کوم ولي (حامي، ساتونکى) ! او وګرځوه مونږ ته له خپله درباره کوم مددګار !».

تفسير: يعنې ستاسې جنګېدل له کفارو سره له دوه جهته ضروري دي:

(۱): د الله تعالی د دين د لوړولو او غالبولو په غرض.

(۲): د هغو مظلومو مسلمانانو د خلاصولو لپاره؛ چې د کافرانو په لاسونو کې خوارو زار پراته دي، په مکې معظمې کې ډېر داسې مسلمانان وو، چې ځمونږ له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره يې د مدينې منورې په لوري «هجرت» ونشو کړی، او کفارو د دغو مسلمانانو خپلوان ربړول (کړول)، او دې ته يې مجبورول چې بېرته کافران شي، نو پاک الله مسلمانانو ته امر وکړ چې تاسې ته له کافرانو سره جنګېدل ضروري دي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ﴿۷۶﴾

هغه کسان چې ايمان لرونکي دي جنګ کوي دوی په لاره دالله کې (د دين د ترقی لپاره)، او هغه کسان چې کافران شوي دي جنګ کوي دوی په لاره د شيطان کې، نو جنګ وکړئ تاسې له دوستانو د شيطان سره !، بېشکه چې مکر د شيطان ضعيف دی.

تفسير: يعنې څنګه چې دا خبره ښکاره ده چې مسلمانان د الله تعالی په لاره کې او کافران د شيطان په لاره کې جنګېږي، نو بيا مسلمانانو ته د شيطان له دوستانو يعنې کافرانو سره بلا تأمل جنګېدل ضروري دي، هر کله چې الله جل جلاله د دوی مددګار دی؛ نو نور هيڅ ډول تردد نه دی پکار، او وپوهيږئ چې د شيطان حيله او فريب کمزوری او ضعيف دی، او پر مسلمانانو باندې نه چليږي، له دې څخه مقصد جهاد ته د مسلمانانو ترغيب او تشجيع ده.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ

آيا نه دي کتلي تا (نه دی رسېدلی تاته حال د) هغو کسانو چې وويل شو دوی ته: ونيسئ تاسې لاسونه خپل (له جنګه په مکه کې) او قائم کړئ (سم اداء کړئ سره له ټولو حقوقو) تاسې لمونځ او ورکړئ ! تاسې زکات !.

تفسير: په مکې معظمې کې پخوا له هجرته کافرانو په مسلمانانو باندې ظلم او تېری کول خپل کار ګرځولی وو، مسلمانان به ځمونږ د پاک رسول الله حضور ته ورتلل، او شکايتونه به يې وړاندې کول، او اجازه به يې غوښتله چې له کفارو سره مقاتله وکړي، رسول الله مبارک به مسلمانان له مقاتلې څخه منع کول، او ويل به يې چې: «ماته لا د مقاتلې حکم نه دی راکړی شوی، تاسې صبر وکړئ ! او حوصله له لاسه مه باسئ ! څکه پر مونږ باندې د صبر او ثبات او استقامت حکم شوی دی، او د لمانځه او زکات هغه حکمونه چې په تاسې باندې شوي دي؛ هغه برابر په ځای راوړئ ! ځکه تر څو چې انسان د الله تعالی په اطاعت کې له خپل نفس سره «جهاد» ونه کړي، او د جسماني تکاليفو په ګاللو او دخپل مال په صرفولو زړور نشي، نو ده ته «جهاد» او خپل ځان ځارول ډېر درونډ وي»، همدا خبره مسلمانانو هم منلې وه (چې لمونځ کوو، زکات ورکوو، او «جهاد» ته منتظر يو).

فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۭ

نو کله چې (په مدينه کې) فرض کړ شو په دوی باندې (له کفارو سره) جنګ، په دې وخت کې يوه ډله له دوی نه ويرېدله له خلقو نه په شان د ويرې (د دوی) له الله نه، بلکه ډېر زيات له جهته د

وېرېږي، او وويل دوی: ای ربه څمونږه ! ولې دې فرض کړ په مونږ باندې جنګ، ولې دې وروسته نه کړو مونږ تر هغې نېږدې پورې.

**تفسیر:** یعنې له هجرت وروسته کله چې مسلمانانو ته له کفارو سره د جنګېدلو حکم ور کړ شو؛ نو باید چې مسلمانان خوشحاله شوي وی، چې څمونږ غوښتنې ومنلې شوې، او خپلو مرادونو ته ورسېدو، مګر ځنې ناقص مسلمانان د کفارو له مقاتلې ځنې داسې ویرېدل لکه چې څوک د الله تعالی له عذابه ویرېږي، یا له هغه څخه هم زیات ویرېدل، او هیله او آرزو به یې کوله که د لږ څه مودې له مخه بیا هم د قتال امر (وروستو شي) ښه به وي، چې مونږ ژوندي پاتې شو.

(ځیني مفسرین لیکي چې: له مرګ څخه دا وېره د طبیعي کراهت له امله وه، نه د الله تعالی له حکم څخه د غاړې غړولو له کبله).

قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيلٌ ۚ وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقَىٰ وَلَا تُظْلَمُونَ فَتِيلًا ۝

ووایه (ای محمده ! دغو ویرېدونکو ته) متاع (فائده) د دې دنیا ډېره لږه ده، او آخرت ډېر غوره دی هغه چا ته چې ویرېږي (له الله نه)، او ظلم به ونه کړی شي پر تاسې (په اندازه) د یوه ډېر نري تار.

**تفسیر:** یعنې څرنګه چې د ژوندانه او د دنیوي منافعو د رغبت له امله دې خلقو ته د «جهاد» حکم دروند ښکاره شو، نو څکه حق تعالی فرمایي چې: دوی ته ووایه، دنیوي ګرد منافع حقیر او سریع الزوال دي، او اخروي ثواب هغو ته ښه او بهتر دی، نو ښایي چې تاسې په پوره شوق او همت سره په «جهاد» کې مصروف اوسئ، (او یقین وکړئ چې پر تاسې باندې به په اندازه د هغه ډېر نري تار چې د خرما د زړو په چاودونو کې دی، او د ګوتې په منبلو سره څرګندیږي، ظلم ونه کړی شي).

أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنتُمْ فِي بُرُوجٍ مُّشَيَّدَةٍ ۗ

هر چېرته چې اوسئ تاسې وبه مومي تاسې لره مرګ، اګر که اوسئ تاسې په برجونو (په کلاګانو، ماڼیو) ډېرو لوړو محکمو مضبوط کړی شویو کې.

**تفسیر:** یعنې که هر څومره مضبوط، محفوظ، مأمون، او بې ویرې ځای کې واوسیږئ، خو بیا هم د مرګي له لاسه ځان نه شي ژغورلئ، او خامخا مرګ تاسې ته در رسیږي، څکه چې هر یوه لره موت مقرر شوی دی، او په خپل وخت کې خامخا هر چاته هر چېرې راتلونکی دی، نو که «جهاد» ته هم لاړ نشئ، خو بیا هم له موت څخه له سره ځان نشئ ژغورلی، خو اوس له جهاده مه ویرېږئ !، څکه چې له موت او د کافرانو له مقاتلې څخه ویرېدل بیخي ناپوهي او په اسلام کې د مسلمانانو د نقصان دلیل دی.

وَإِن تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِ اللَّهِ ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَٰذِهِ مِنْ عِندِكَ ۚ

او که ورسیږي دوی ته څه نیکي (لکه پراخي) نو وایي: دا (نیکي) له (جانبه) د الله ده، او که ورسیږي دوی ته څه بدي (لکه قحط) نو وایي دوی: دا (بدي) له جانبه ستا ده.

یعنې د دې منافقانو یوه بله عجیبه خبره واوره ! که د جنګ تدبیرونو ښه نتیجه ور کړه، او فتح او بری حاصل شو، او مسلمانانو ته د غنیمت او ولجې مالونه په لاس ورغلل، نو وایي: «دا د الله له

لوري دي»، يعني يوه اتفاقي خبره پېښه شوې ده، او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له تدبيرونو ځني انكار كوي، او كه تدبير په ظاهر كې نتيجه ورنه كړه، او د هغه له امله هزيمت او نقصان پېښ شو، نو دلته د رسول الله صلى الله عليه وسلم په تدبيرونو باندې الزامات لګوي، (يهودانو) به ويل: «له هغه كال څخه چې د محمد قدم په مدينه كې ايښود شوى دى، د غلو نرخونه پورته او د ځمكې او د باغونو حاصلات ښكته شوي دي !».

قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِندِ اللَّهِ ۖ فَمَالِ هَٰؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا ﴿٧٨﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) دا ټول (خير او شر) له (جانبه) د الله دى، پس څه سبب دى، دې قوم لره چې نه دي نږدې (دې ته) چې پوه شي دوى په هيڅ خبره باندې.

تفسير: الله تعالى فرمايي چې اى محمده ! (صلى الله عليه وسلم) دوى ته هسې ځواب ورکړه چې ښه او بد (تنګي او پراخي، قحطي او ارزاني بلکه هر خير اوشر) ګرد د الله تعالى له لوري دى، په هسې خبرو كې بل هيڅوك ګوتې نشي وهلى، او نه څوك په كې مداخله كولى شي، ستاسې دا الزام په نبي باندې بيخي غلط او له يوې مخې ناپوهي ده، كوم تدبير كه ظاهري نتيجه ورنه كړي، خراب يې مه ګڼئ ! دا د الله تعالى حكمت دى چې تاسې ته ښوونه كوي، په سمه صافه لاره مو راولي، او ستاسې ازموينه كوي.

مَّا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ ۖ وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ ۚ وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴿٧٩﴾

هر هغه شى چې ورسېږ تاته (اى انسانه !) له نېكۍ راحت، او خوشحالۍ څخه نو (هغه) له (جانبه د) الله دى، او هر هغه شى چې ورسېږ تاته (اى انسانه !) له بدۍ، زحمته، او مصيبته نو (هغه) له (جانبه د) نفس ستا دى، او لېږلى يې مونږ ته (اى محمده !) لپاره د (ټولو) خلقو رسول، او بس دى الله شاهد (په رسالت ستا اى محمده !).

تفسير: يعني اصلي خبره خو همدا ده چې د ګردو نېكيو او بديو موجد اګر كه الله جل جلاله دى، مګر بنده لره ښايي چې نيكي او ښېګڼه د الله تعالى انعام، فضل، او احسان وګڼي، او بدي، خرابي، او سختي د خپلو اعمالو له شامته وبولي، او د هغه الزام په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې وا نه چوي، ځكه چې رسولان د هسې امورو موجد او سبب نشي كېدى، بلكه موجد يعني د دې خبرې پيدا كوونكى الله تعالى دى، او سبب يې ستاسې اعمال دي.

مَّن يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ ۖ وَمَن تَوَلَّىٰ فَمَا أَرْسَلْنَاكَ عَلَيْهِمْ حَفِيظًا ﴿٨٠﴾

هر چاچې حكم ومنلو د رسول (د الله) نو په تحقيق چې حكم ويې ومنلو د الله، او هر څوك چې وګرځېد (له اطاعته نو مه خپه كېږه اى محمده ! ځكه چې) نه يې لېږلى مونږ ته په دوى باندې ساتونكى (څارونكى د اعمالو).

وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِندِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ۖ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٨١﴾

او وايي دوى (ځمونږ كار ستا) اطاعت دى، نو كله چې راووځي دوى له تا څخه نو د شپې (په مشوره سره وايي) يو ډله له دوى غير له هغې خبرې نه چې وايې (دا طائفه تاته)، او الله ليكي هغه

خبرې چې د شپې يې (په مشوره سره) وايي دوی، نو په څنګ شه ته ! له دوی نه (او ترې تغافل وکړه ته !) او توکل (اعتماد) وکړه په الله باندې ! او بس دی الله وکيل (کار جوړوونکی).

**تفسير:** د دغو منافقانو يوه بله مکاري واورئ ! ستاسې به مخکې وايي: ستاسې حکم مو ومنلو، او چې د باندې لاړ شي؛ ستاسې په مخالفت مشورې سره کوي، يعنې ستا په نافرمانۍ او مخالفت په خپلو منځونو کې سره جرګې کوي، او د الله تعالی په دربار کې د دوی دا ګردې مشورې هم ليکلې کيږي، او دوی ته د دوی د ګردو اعمالو او اقوالو سزا ورکوله کيږي، نو ای نبي عليه السلام ! ته له دوی څنې خپل مخ وګرځوه ! او د دوی د هيڅ خبرې پروا مه لره ! او خپل ټول کارونه الله جل جلاله ته وسپاره، پاک الله تاته کافي او بس دی.

«طاعةٌ» د محذوفې مبتدأ خبر دی، چې هغه «أمرُنا» دی.

ځينې مفسرين وايي چې: ﴿تَقُوْلُ﴾ د غائب مؤنث صيغه او فاعل يې ﴿طَآئِفَةٌ﴾ دی، لکه چې په دغه پاس ترجمه او تفسير کې يې ګورئ.

ځينې مفسرين يې په مخاطب مذکر سره ترجمه کوي، چې فاعل يې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم دی.

أَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ ۚ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿۸۲﴾

آيا نو فکر غور نه کوي دوی په دې (فصيح بليغ معجز) قرآن کې، او که وي (دا قرآن) له جانبه د غير د الله څخه نو خامخا موندلې به وو (دوی) په هغه کې اختلاف ډېر (لکه چې د بشريت کلام کې د معناګانو تناقض او د الفاظو تفاوت موندل کيږي).

**تفسير:** دا خلق په قرآن کريم کې غور نه کوي، چې دوی ته په صاف ډول سره دا ورڅرګنده شي، چې قرآن عظيم د الله تعالی کلام دی، وګورئ ! که لوی قرآن د الله تعالی کلام نه وی، لکه چې تاسې ګمان کوئ؛ نو ضرور به د (قرآن شريف) په ډېرو مواقعو کې راز راز اختلافونه ليدل کېدل.

وګورئ ! انسان له هر حالت سره سمې خبرې کوي، او له هغه حالت سره موافقې خبرې کوي، هر نوې حالت چې پيښيږي؛ د هغه بل حالت خيال انسان ته نه پاتې کيږي، که دا قرآنکريم د الله تعالی کلام نه وي، نو د غصې په حالت کې به يې د مهربانۍ وړ کسانو ته توجه نه کوله، او د مهربانۍ په وخت کې به يې د غصې خبرې هيرولې، او د دنيا په بيان کې به يې د آخرت لحاظ نه ساته، او د آخرت په بيان کې به يې د دنيا څه خبرې نه کولې، په بې پراويۍ کې به د عنايت څه ذکر نه وی، او په عنايت کې به د بې پروايۍ فکر نه وی، بالجمله د هر حال کلام به يې وايه، او د يوه حال کلام به يې د بل حال کلام څخه مختلف په نظر راته، ليکن څرنګه چې (قرآن عظيم الشأن) د خالق کلام دی، نو په دې کې د دغو ګردو حالاتو او جوانبو لحاظ شته، او تر نظر لاندې نيولی شوی دی، له غور او فکر څخه وروسته معلوميږي چې په (قرآن شريف) کې د هر شي بيا د هر مقام په اقتضاء په همغه يو اسلوب سره دی.

**فائده:** په دی کې دې خبرې ته هم اشاره وشوه، هر څوک چې له تدبر او فهم څخه کار وانخلي، نو ده ته په دې قرآن عظيم کې د شبهاتو او اختلافاتو وهم هم لوېدی شي، مګر پوه او فهيم سړی له سره داسې نه کوي، په دې مقام کې که څوک له فهم او تدبر څخه کار وانخلي، نو ويلی شي چې اول يې وفرمايل: ﴿قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ﴾ بيايې وفرمايل: ﴿وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ﴾ نو دلته خو تناقض او اختلاف راغی، (حال دا چې مونږ له هغه پاس تقرير سره هيڅ يو اختلاف نشته) والله أعلم.

وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ ٱلْأَمْنِ أَوِ ٱلْخَوْفِ أَذَاعُوا۟ بِهِۦ ۖ

او کله چې راشي دې (منافقانو) ته کوم امر (خبره) له امن (نصرت) يا (کوم خبر له) ويرې (هزيمت) نو مشهوروي دوی هغه (خبر).

**تفسیر:** يعنې په دې منافقانو او ناقصو مسلمانانو کې داسې خرابي شته، کله چې د امن کومه خبره وړاندې شي، لکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له چا سره د صلحې او روغې اراده وفرمايي، يا د اسلامي لښکرو د برې زبرې واوريدل شي، يا کومه ويروونکې خبره واوري، لکه چې دښمنان چېرې سره ټول شوي وي، يا د مسلمانانو د ماتې خبره واوري؛ نو داسې خبرې بې له تحقيقه مشهوروي او خوروي يې، چې له هغو څخه علی الأکثر مسلمانانو ته نقصان او فساد پېښيږي، منافق د ضرر رسولو په قصد او ناپوه مسلمان د ناپوهی له امله داسې کوي.

وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى ٱلرَّسُولِ وَإِلَىٰٓ أُو۟لِى ٱلْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ ٱلَّذِينَ يَسْتَنۢبِطُونَهُۥ مِنْهُمْ ۗ

او که دوی وررسولې (او پرېښې) وی دا خبر رسول (د الله) ته او حاکمانو خپلو ته له دوی نه؛ نو خامخا معلوم به وی (تدبیر) د دې کار هغو کسانو ته چې ایستلی (او ښلولی شي ښه له بدو) له دوی څنې (رسول الله او اُمراء، نو تحقیق به یې شوی وی).

**تفسیر:** يعنې که له کوم ځای څخه کوم خبر وررسيږي، نو ښايي چې لومړی يې خپل مشر او د هغه نائبانو ته ووايي، کله چې دوی د دې خبرې تحقيق او تسليم وکړي، نو بيا دې د دوی له وينا او فيصلې سره سم د هغه نقل دې بل چا ته وکړي، او پر هغه باندې دې عمل وکړي.

وَلَوْلَا فَضْلُ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُۥ لَٱتَّبَعْتُمُ ٱلشَّيْطَٰنَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٣﴾

او که نه وی فضل د الله پر تاسې (په اسلام) او رحمت د ده (په نزول د قرآن) نو خامخا به متابعت کړی وو تاسې د شيطان مګر (متابعت به نه وو کړی له تاسې څخه) لږو.

**تفسیر:** يعنې که الله جل جلاله پخپل فضل ستاسې د اصلاح او تربيت لپاره احکام نه وی ليږلي، او تاسې ته يې وخت په وخت سم له ضرورته هدايت اوتنبيه نه وی فرمايلې، لکه چې په دې موقع کې يې رسول الله صلی الله علیه وسلم او مشرانو ته د رجوع کولو هدايت وفرمايه؛ نو تاسې به ګمراه شوي وئ، مګر څو خواص چې کامل العقل او کامل الايمان دي، همغسې به په ايمان قائم او ثابت پاتې وای، (د الله تعالی دا تنبیهات) انعام وګڼئ! او په شکر ايستلو سره د هغه پوره تعميل وکړئ!.

فَقَٰتِلْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ ۚ وَحَرِّضِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۖ عَسَى ٱللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأْسَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ

نو جنګ وکړه ته په لاره د الله کې (لپاره د ترقۍ د دين پخپله ای محمده! که بل چا درسره ملګرتيا نه کوله)، نه يې مکلف کړی شوی ته مګر په حق د ځان خپل او تېزوه مؤمنان (په جهاد او ورترغيبوه يې!)، نږدې ده چې الله بنده کړي (سختي د) جنګ د هغو کسانو چې کافران شوي دي.

**تفسیر:** يعنې که د کافرانو له جنګ څخه دا منافقان او ناقص مسلمانان (چې د هغوی ذکر پاس تېر شو) ويريږي، نو ای رسوله! ته يواځې بالذات په خپل سر په «جهاد» کولو کې توقف مه کوه! الله جل جلاله ستا مددګار دی، او مسلمانانو

ته د «جهاد» تاکید وکړه ! هغه کسان چې له تاسې سره ملګرتیا نه کوي، د دوی هیڅ پروا مه کوه ! هیله (امید) شته چې الله تعالی د دې کافرانو د جنګ مخه ونیسي.

وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَأْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ﴿۸۴﴾

او الله ډېر سخت دی له جهته د هیبت، جنګ، او ډېر سخت دی له جهته د عذاب ورکولو (له دغو کفارو نه).

تفسیر: یعنې د الله تعالی عذاب او له کافرانو سره د هغه جنګ ډېر سخت دی، نو هغه کسان چې د کافرانو له جنګ او د هغوی له لاسه له وژل کېدو څخه ویرېږي، نو دوی به د الله جل جلاله د قهر او د ده د عذاب تحمل په څه ډول سره وکړی شي؟

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ؕ

او هر څوک چې سپارښت وکړي سپارښت نېک (له شرعې سره سم) نو وي به دې (سپارښت کوونکي) لره یوه برخه (د ثواب) په سبب د هغه سپارښت سره، او هر څوک چې سپارښت وکړي سپارښت ناکاره (له شرعې خلاف) نو وي به دې (سپارښت کوونکي) لره یو بار «برخه د ګناه» په سبب د هغه سپارښت سره.

تفسیر: یعنې که څوک په نېکو کارونو کې سعې او سپارښت وکړي، لکه چې نبي صلی الله علیه وسلم مسلمانانو ته د جهاد ترغیب ورکوي، یا څوک په خرابو چارو کې کوښښ کوي، لکه چې منافقان او سست مسلمانان چې هم پخپله له جهاده ویرېږي، او هم د نورو د ویرولو اسباب برابروي، نو په لومړي صورت کې به د ثواب او په وروستني صورت کې به د ګناه برخه دوی ته وررسیږي، هم داسې که څوک د کوم محتاج سپارښت وکړي، او له کوم دولتمن څخه ورته واخلي، نو دې به هم د هغه خیرات په ثواب کې داخلیږي، که څوک د کوم کافر یا مفسد یا سارق او نورو سپارښت وکړي، او هغه د حاکم یا د نورو له لاسه خلاص کړي، او هغه بیا فساد او غلا وکړي نو دې هم په هغه فساد او غلا کې ورسره شریک دی.

وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ﴿۸۵﴾

او دی الله پر هر شي باندې قدرت لرونکی (نو وربه کړي جزا هر چا لره په عمل د ده سره).

تفسیر: یعنې الله تعالی پر ټولو شیانو قادر او د هر شي د برخې تقسیم کوونکی دی، نو د نېکۍ او بدۍ په حصه کولو کې ده ته هیڅ کوم تکلیف نه پېښیږي.

وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيْبًا ﴿۸۶﴾

او هر کله چې سلام وکړه شي تاسې ته په یوه سلام سره؛ نو تاسې هم (جواب د) سلام وکړئ (هغه ته) په سلام ښه سره له هغه نه، یا ور وګرځوئ همغه (سلام)، بېشکه چې الله دی پر هر شي باندې ښه حساب کوونکی (نو درسره حساب کوي او جزا در کوي).

تفسیر: یعنې ای مسلمانانو ! کله چې کوم مسلمان تاسې ته دعا وکړي یا سلام واچوي، نو تاسې هم خامخا د هغه ځواب ووایئ ! یا همغه کلمه تاسې هم هغه ته وایئ ! یا له هغه څخې ښه او بهتره دعا وکړئ ! مثلاً که څوک «السلام

علیکم» ووايي؛ نو پر تاسې باندې واجب دي چې د هغه په ځواب کې «وعلیکم السلام» ووايئ، او که زيات ثواب غواړئ، نو «ورحمة الله» هم پرې زيات کړئ، او که هغه دا لفظ زيات کړي، نو تاسې پرې «وبرکاته» زيات کړئ ! او د الله تعالی په دربار کې به د هر هر شي حساب وي، او د همغه اجر به يې در رسيږي، سلام او د هغه ځواب هم په همدې کې راغلل.

**فائده:** په دې کې د شفاعت حسنه پوره ترغيب وشو، او د شفاعت سيئه خرابي او مضرت هم معلوم شو، ځکه الله جل جلاله هغه چا ته چې نېک شفاعت يې کړی وي، ثواب ورکوي، او هغه چاته چې په حق يې شفاعت شوی وي؛ امر کوي چې له شفاعت کوونکي سره نېکه معامله وساتي، په خلاف د سيئه شفاعت، چې له هغه څخه د محروميت او معصيت نه پرته بل هيڅ شی نه په برخه کيږي.

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ۟ ﴿٨٧﴾

الله چې دی، نشته هيڅ لايق د عبادت مګر يواځې هم دی دی، خامخا راجمع به کړي، هرومرو تاسې ورځې د قيامت ته، چې نشته هيڅ شک په هغې (ورځې يا په دې جمع) کې او څوک دي ډېر رښتيني له الله نه له جهته د خبرې؟ (هيڅ څوک نشته !).

**تفسير:** يعنې د قيامت راتګ او د ثواب او عقاب د ګردو مواعيدو پوره کېدل ټول حق او رښتيا دي، او په کې به له سره تخلف نه وي، نه ښايي چې دا خبرې دې معمولي او سرسري وګڼلی شي.

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا ؕ اَتُرِيْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ﴿٨٨﴾

نو څه شوي دي پر تاسې په (معامله) د منافقانو کې چې دوه ډلې (شوي يئ)، او الله نسکور کړي دي دوی (رد کړي يې دي کفر ته) په سبب د هغو بدو اعمالو چې کړي دي دوی (لکه نفاق او له مشرکانو سره ملحق کېدل)، آيا اراده لرئ تاسې (ای مؤمنانو !) د دې چې په سمه صافه لاره برابر کړئ تاسې هغه څوک چې ګمراه کړي دي الله، او هر څوک چې ګمراه (يې) کړي الله؛ پس نه به مومې ته ده ته هيڅ لاره (د هدايت).

**تفسير:** په دې منافقانو کې هغه خلق هم داخل دي، چې په ښکاره ډول سره يې ايمان نه وو راوړی، بلکه ظاهراً او باطناً په کفر باندې ټينګ ولاړ وو، ليکن د ( محمد صلی الله عليه وسلم) او د مسلمانانو سره به يې په ښکاره ډول سره ناسته ولاړه او د مينې او محبت معامله درلوده (لرله)، او د دوی غرض دا وو چې که دمسلمانانو لښکر ځمونږ په قوم باندې يرغل (حمله) راوړي، نو ځمونږ مال او ځان به په دې چم (بهانه) او حيله سره محفوظ پاتې شي، هر کله چې مسلمانانو ته معلوم شو چې د دوی تګ او راتګ په دې مقصد دی، او مونږ سره د زړه مينه او محبت نه لري، نو ځينو مسلمانانو وويل چې: «ښايي له داسې شريرانو سره ناسته ولاړه پرېښودل شي، تر څو دوی له مونږ څخه جلا شي»، او ځينو وويل چې: «ښايي له دوی سره ناسته ولاړه ولرو، ګوندې ايمان راوړي»، نو دا آيت نازل شو چې: «هدايت او ضلالت د الله تعالی په اختيار کې دی، تاسې د هغه په فکر کې له سره مه اوسئ !، ښايي له دې خلقو سره بالاتفاق همغسې معامله وکړل شي چې وروسته له دې راځي، او په خپلو منځونو کې دوه ډلې مه کيږئ».

وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ كَمَا كَفَرُوْا فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ اَوْلِيَآءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُّمُوْهُمْ ۠ وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۸۹﴾

دوست گڼي دوی (او غواړي دا مرتدان) که تاسې (هم) کافران شئ لکه چې کافران شوي دي (دوی) نو شئ به تاسې او دوی (ګرد سره) برابر (په کفر کې)، نو مه نیسئ تاسې (هیڅوک) له دوی نه دوستان تر څو چې (د زړه نه ایمان راوړي او) هجرت (هم) وکړي په لاره د الله کې، نو که وګرځېدل دوی (له لارې د الله) نو ونیسئ تاسې دوی (او بندیان يې کړئ) او ويې وژنئ تاسې دوی، هر چېرې چې ومومئ تاسې دوی، او مه نیسئ تاسې (هیڅوک) له دوی څخه دوست او نه مددګار (په خپلو نورو دښمنانو باندې).

تفسیر: یعنې دا منافقان په کفر باندې داسې ټینګ ولاړ دي، چې پخپله خو ایمان نه راوړي، بلکه دا غواړي چې تاسې هم د هغوی په شان کافران او واړه سره برابر او یو شان شئ، نو اوس تاسې ته نښایي تر څو چې دوی ایمان رانه وړي، او خپل ګرد نفساني اغراض پرې نه ږدي، (او د حق او حقانیت په جانب په صدق او اخلاص سره روان نشي)، تر هغه پورې تاسې له دوی سره دوستي مه کوئ ! که دا خلق د زړه له کومي ایمان رانه وړي، او د الله جل جلاله په لاره کې هجرت ونه کړي، نو دوی بندیان کړئ ! او هر چېرې چې ومومئ ويې وژنئ ! او له دوی څخه په کلي ډول سره اجتناب وکړئ ! او ځانونه تري وژغورئ (بچ کړئ) او هیڅ راز تعلق او ارتباط له دوی سره مه لرئ !.

اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ اِلٰى قَوْمٍ ۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ اَوْ جَآءُوْكُمْ حَصِرَتْ صُدُوْرُهُمْ اَنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ اَوْ يُقَاتِلُوْا قَوْمَهُمْ ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقٰتَلُوْكُمْ ۚ فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ وَاَلْقَوْا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ ۙ فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا ﴿۹۰﴾

مګر (مه وژنئ او مه بندي کوئ) هغه کسان چې وتړي دوی ځانونه خپل (او امان وروړي) هغه قوم ته چې په منځ ستاسې او په منځ د دوی کې عهد، پیمان وي، یا راشي دوی تاسې ته حال دا چې تنګې شوي وي سینې (زړونه) د دوی، (او بد ګڼي دا خبره) چې جنګ وکړي له تاسې سره (د خپل قوم په مرسته)، یا جنګ وکړي دوی له قوم خپل سره (ستاسې په مرسته)، او که اراده کړې وای الله نو خامخا زورور کړي به یې وی دوی په تاسې نو خامخا به جنګېدل له تاسې سره، نو که څنګ وکړ دوی له تاسې، پس ونه کړ جنګ دوی له تاسې سره، او دروړاندې کړه دوی تاسې ته روغه (او امان وغواړي له تاسې نه)؛ نو نه ده ګرځولې الله تاسې ته پر دوی هیڅ لاره (د نیولو او وژلو او مال اخیستلو).

تفسیر: یعنې د دې ظاهري او باطني مینې او محبت له امله د دوی له قید او قتل څخه ځانونه مه ژغورئ (ساتئ) ! مګر په دوه حالتونو کې:

(۱): له هغو خلقو سره چې تاسې روغه کړې وي، له هغوی سره دوی هم معاهده او مصالحه ولري، نو دوی هم په صلح کې داخلیږي.

(۲): هغه کسان چې له جنګ څخې عاجزان شي، او له تاسې سره صلح وکړي، او د دې خبرې عهد او پیمان وکړي؛ چې نه به د خپل قوم په طرفدارۍ له تاسې سره جنګ وکړي، او نه به له تاسې سره ملګري شي چې له خپله

قومه سره وجنګيږي، او پر دې عهد باندې ټينګ هم پاتې شو، نو له هسې خلقو سره مه جنګيږئ، او د دوی مصالحه منظور کړئ ! او دا د الله تعالی له احسانه وګڼئ، چې دوی ستاسې له جنګ څخه مخ اړوي، که الله تعالی اراده فرمايلې وی، نو دوی به يې پر تاسې باندې زړور، زورور او غالب ګرځولي وای.

سَتَجِدُونَ اٰخَرِيْنَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّاْمَنُوْكُمْ وَ يَاْمَنُوْا قَوْمَهُمْ ؕ كُلَّمَا رُدُّوْٓا اِلَى الْفِتْنَةِ اُرْكِسُوْا فِيْهَا ۚ فَاِنْ لَّمْ يَعْتَزِلُوْكُمْ وَيُلْقُوْٓا اِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوْٓا اَيْدِيَهُمْ فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ ؕ وَاُولٰٓئِكُمْ جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۹۱﴾

ژر به ومومئ تاسې يو بل (قوم) چې اراده به لري دوی د دې، چې په امان شي له تاسې (هم) او په امان شي له قومه خپله (هم)، هر کله چې وبلل شي دوی فتنې (فساد، کفر) ته نو نسکور پريوځي په فساد کې، بيا که ونشول په څنګ دوی له تاسې نه او دروړاندې يې نکړه تاسې ته روغه (او د امان طلب) او بند يې نه کړل لاسونه خپل (له جنګه) نو ونيسئ تاسې دوی (او بندي يې کړئ) او ووژنئ تاسې دوی په هر ځای کې چې وموميئ تاسې دوی، او دا ټول خلک ګرځولي دي مونږه تاسې لره پر دوی باندې برهان (دليل) ښکاره (د دوی په قتل، او بند چې د دوی د ټګۍ په سبب وررسيږي).

**تفسير:** يعنې ځينې خلق داسې هم دي چې له تاسې سره عهد کوي، چې نه به له تاسې سره جنګيږي، او نه به له خپله قومه سره، تر څو ستاسې او د خپل قوم له لوري يعنې د دواړو خواوو څخه مأمون او ډاډه شي، ليکن دوی په دې عهد باندې ټينګ نه پاتې کيږي، بلکه هر کله چې د خپل قوم برئ او غلبه وګوري، له هغوی سره مرسته کوي، نو د هسې خلقو له تجاوز څنې تاسې هم مه تيريږئ ! ځکه چې ستاسې لاس ته خو صريح حجت راغلی، او دوی خپل عهد پخپله مات کړی دی.

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ

او نه ښايي (يا نه دي روا) هيڅ مؤمن ته (يا نه دی د مؤمن کار) دا چې مړ کړي (بل) مؤمن مګر په خطا سره.

**تفسير:** په دې موقع کې د خطا د قتل احکام بيان فرمايي، او دا را څرګندوي چې د اسلامي کلمې د ويونکي وژل لويه ګناه ده، هو ! که چېرې په خطا سره ووژل شي؛ نو دا د مجبورۍ خبره ده، او د هغه احکام بيانيږي، او په دې ضمن کې د مجاهدينو فضيلت او (دار الکفر) څخه د (دار الاسلام) په لوري د هجرت کولو ضرورت او د سفر او د خوف د لمونځونو کيفيت هم بيانيږي.

**فائده:** د خطا قتل يعنې د مسلمان وژل په خطا سره څو صورتونه لري، لکه چې پر کوم مسلمان باندې د ښکار په ګمان په غلطه ګزار وکړي، او ويې وژني، يا ګولۍ يا غشی يا نور له ښکار څنې وتلی، يا ختلی، پر کوم مسلمان باندې ولګيږي.

د خطا قتل يو صورت دا هم کېدی شي، چې يو مسلمان له (دار الاسلام) څخه د خپلو چارو لپاره (دار الحرب) ته لاړ شي، او د کافرانو په منځ کې وي، او پر هغه باندې کوم بل مسلمان د کافر ګمان وکړي، او په بې خبرۍ سره يې ووژني، او دلته د همدې صورت بيانول مقصود دي، ځکه چې مجاهدينو ته على الأکثر داسې پېښې ورپېښې دي.

وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦٓ إِلَّآ أَن يَصَّدَّقُوا۟ ۚ فَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۖ وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَـٰقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۖ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿٩٢﴾

او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په خطا سره نو (شته پر قاتل) آزادول د غاړې (د مريي) مؤمن، او (بل) ديت دی سپارلی شوی اهل (وارثانو) د مقتول ته، مګر دا که معاف کړي دا (وارثان دغه قاتل)، پس که وو (دا مقتول) له (هسې) قومه چې دښمن وي تاسې لره، حال دا چې دا (مقتول) مؤمن وي؛ نو (شته پر قاتل تش) آزادول د غاړې (د مريي) مؤمن (بې له ديته)، او که وو دا مقتول له (هسې) قومه چې په منځ ستاسې او په منځ د هغه قوم کې عهد وي، نو (شته پر قاتل يو) ديت سپارلی شوی اهل (وارثانو) د مقتول ته، او (بل) آزادول د غاړي (د مريي) مؤمن دي، پس هر څوک چې ونه مومي (مريي يا مال چې پرې مريي واخلي)؛ نو (پرې) روژه نيول د دوو مياشتو دي پرله پسې (بلا انقطاع، لپاره د قبلولو د) توبې له (جانبه د) الله، او دی الله ښه عالم (په ټولو احوالو) لوی حکمت والا (چې هر کار په حکمت او مصلحت سره کوي).

**تفسير:** په دې آيت کې د خطا قتل دوه جزاګانې ښوول شوي دي:

لومړی د مسلمان مريي آزادول، او که له قدرت يې پوره نه وي، نو دوې مياشتې متصلې روژه نيول دي، دا د الله تعالی په دربار کې کفاره او د قاتل د خطا تلافي ده.

دويم د هغه مقتول وارثانو ته د وينو بدل او ديت ورکول دي، چې دا د هغوی حق دی، او دغه ديت د دوی په معافولو سره معافېدی هم شي، مګر کفاره د چا په معافولو سره نه معافيږي.

او د خطا قتل درې صورتونه لري، ځکه هغه مسلمان چې په خطا سره وژل شوی دی، د ده ورثه به يا مسلمان وي، يا به کافر، که کافر وي، نو له ده سره به يې مصالحه وي، يا دښمني، په ړومبنيو دواړو صورتونو کې د مقتول وارثانو ته د ويني بدل ورکول لازميږي، په دريم صورت کې د وينې بدل نه لازميږي، او کفاره به په درې واړو صورتونو کې لازم الأداء وي.

وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُۥ جَهَنَّمُ خَـٰلِدًا فِيهَا وَغَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُۥ وَأَعَدَّ لَهُۥ عَذَابًا عَظِيمًا ﴿٩٣﴾

او هر څوک چې مړ کړي کوم مؤمن په قصد سره (او د مسلمان دغه قتل روا هم وګڼي) نو جزا د ده دوزخ دی، (په داسې حال کې) چې تل به وي دی (دغه حلال ګڼونکی د قتل) په هغه «دوزخ» کې، او غضب (قهر) کړی دی الله په ده باندې، او لرې کړی دی (الله) دا (قاتل) له خپل رحمت څخه، او تيار کړی يې دی ده ته عذاب ډېر لوی.

**تفسير:** يعني که يو مسلمان بل مسلمان په غلطی سره نه، بلکه په قصد سره او سره له دې چې ښه يې پېژني چې مسلمان دی، خو وژني يې؛ نو د ده لپاره په آخرت کې جهنم او لعنت او لوی عذاب دی، او په کفاره سره ترې نه خلاصيږي، او دنيوي سزا يې همغه ده چې په (۲) جزء د البقره سورت په (۱۷۸) آيت (۲۲) رکوع کې تېره شوې ده، (چې هغه قصاص او کسات اخيستل دي).

**فائده:** د ګردو عالمانو په نزد (خلود في النار) هغه چا لره دی چې د مسلمان وژل حلال ګڼي، ځکه چې د هغه په کفر کې شک نشته، يا به له «خلود في النار» (تل تر تله) ځنې تر اوږدې مودې پورې په جهنم کې هستوګنه مراد وي، يا

خو به داسې قاتل مستحق د همداسې لويې سزا وي، وروسته الله تعالی پخپله مالك او مختار دی، او «خلود في النار» او «خروج عن النار» دواړه د ده کار دی، هر څه چې اراده يې وي؛ همغسې کوي، والله أعلم.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا ضَرَبْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ فَتَبَيَّنُواْ وَلَا تَقُولُواْ لِمَنْ أَلْقَىٰٓ إِلَيْكُمُ ٱلسَّلَٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا فَعِندَ ٱللَّهِ مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) کله چې سفر کوئ تاسې په لاره د الله کې (جهاد ته) نو ښه تحقيق وکړئ، او مه وايئ تاسې هغه چا ته چې در اچوي تاسې ته سلام چې: نه يې ته مؤمن (او د اسلام کلمه دې له ويرې ويلې ده)، غواړئ تاسې مال (اسباب) د دې حيات دنيوي (ژوندون لږ خسيس، او که واقعي غنيمت غواړئ) پس دې الله سره غنيمتونه ډېر.

**تفسير:** رسول اکرم صلى الله عليه وسلم يو لښکر د غزا «جهاد» په غرض پر يوه قوم باندې ورواستاوه، په دې قوم کې يو سړی (مرداس نامه) مسلمان وو، چې له خپل مال اسباب او مواشي سره له کفارو څنې جلا شوی او بېل ولاړ وو، کله چې دی له مسلمانانو سره مخ شو نو «السلام عليكم» يې وويل، مګر أسامه بن زيد رضي الله تعالى عنه داسې ګومان وکړ چې دا هم کافر دی، او د خپل مال او ځان د خلاصولو لپاره ځان مسلمان راښکاره ګندوي، نو هغه يې وواژه، او هغه مال او اسباب او مواشي يې ګرد ترېنه واخيستل.

(ځينې وايي: کله چې مقداد رضي الله تعالى عنه هغه سړی ووژاه، چې کلمه يې ويله، او د قتل سبب يې دا وباله، چې ده غوښتل چې په دې حيلې سره مال، عيال، او ځان خلاص کړي) نو دا آيت نازل شو، او مسلمانانو ته تنبيه او تاکيد وفرمايل شو، کله چې تاسې د «جهاد» لپاره سفر کوئ، له تحقيق څخه کار اخلئ !، او بې له فکره او پوهې څخه کوم کار مه کوئ ! او هغه څوك چې تاسې ته خپل ځان مسلمان درښکاره کړي، نو د ده د اسلام په منلو کې له سره انکار مه کوئ ! او له الله جل جلاله سره ډېر زيات غنائم شته، نو هسې حقير سامان ته له سره مه ګورئ !.

(وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې واقعې لـه اورېدلـو سخت خپه شو، او پـه هغې صحابي باندې په قهر شو، او د دغه بې موجبه قتل د سبب له اورېدلو څخه وروسته يې وفرمايل: «هلا شققت قلبه» ـ آيا د ده زړه دې څيرې کړی وو؟ چې ته وپوهېدې، چې دې رښتيا وايي که دروغ؟).

كَذَٰلِكَ كُنتُم مِّن قَبْلُ فَمَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوٓاْ

همداسې وئ تاسې (هم چې يوائې د اسلام په اظهار سره مأمون شوي وئ) پخوا له دې، نو فضل وکړ الله په تاسې، نو ښه تحقيق کوئ (او هيچا ته تش په شبهه ضرر مه رسوئ !).

**تفسير:** تاسې پخوا له دې همداسې وئ، يعنې پخوا له اسلامه د دنيوي اغراضو له امله تاسې هم داسې په ناحقه وينې تويولې، ليکن اوس سره له اسلامه داسې له سره مه کوئ !، بلکه د هغه چا په وژلو کې هم احتياط کوئ، چې دهغه د مسلمان کېدو احتمال وي.

يا يې دا مطلب دی چې له دې نه پخوا د اسلام په شروع کې تاسې هم د کافرانو په ښارونو کې اوسېدئ، او تاسې د کوم مستقل حکومت او د کوم مستقل ځای خاوندان نه وئ، نو لکه چې په هغه حالت کې هم ستاسې ظاهري اسلام اعتبار درلود او ستاسې د ځان او د مال حفاظت او رعايت شوی وو، نو همداسې په تاسې باندې هم لازم دي، چې د نورو ظاهري مسلمانانو د مال او د ځان رعايت او حفاظت وکړئ، او بې له تحقيقه څوك ونه وژنئ ! او ښايي چې له احتياط دقت او غور څخه کار واخلئ !.

إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿٩٤﴾

بېشکه الله دی په هغه څه چې تاسې (یې) کوئ ښه خبردار (نو پرې جزا درکوي).

تفسیر: یعنې الله تعالی ستاسې په ظاهري اعمالو او زړونو په ټېټو خبرو باندې خبر دی، نو وروسته له دې که څوک وژنئ محض (د الله تعالی) په حکم سره یې وژنئ ! او اصلا په هغه کې خپل هیڅ غرض ته مداخله مه ورکوئ ! او دا مقصد دې که کوم کافر د خپل مال او د ځان له ویرې ستاسې په مخ کې د اسلام اظهار وکړي، او تاسې تېر باسي، او په چم (بهانه) او فرېب سره خپل ځان وژغوري (بچ کړي)، نو الله تعالی ته ټول شیان معلوم دي، او د هغه له عذاب څخه هیڅوک خپل ځان نشي ژغورلی، (ساتلی) مګر تاسې هغه ته هیڅ مه وایئ ! دا ستاسې کار نه دی، مونږ به له هغو سره ګورو.

لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ۚ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً ۚ وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٩٥﴾ دَرَجَاتٍ مِنْهُ وَمَغْفِرَةً وَرَحْمَةً ۚ

نه دي برابر (الله ته) کیناستونکي (په کور کې) له مؤمنانو نه (له جهاده) - بې له خاوندانو د عذره - او جهاد کوونکي په لاره د الله کې (د دین د ترقی لپاره) په مالونو خپلو سره او ځانونو خپلو سره، فضیلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته په (لګولو د) مالونو خپلو سره، او (په جارولو د) ځانونو خپلو سره پر کیناستونکو باندې (له معذرته) په درجه کې، او له ټولو سره (که مجاهد وي که معذور ناست) وعده کړې ده الله د ښې جزا (جنت)، او فضیلت ورکړی دی الله جهاد کوونکو ته پر کیناستونکو (له معذرته) په اجر عظیم ډېر لوی سره؛ چې مرتبې دي (لویې چې په عزت او کرامت کې سره متفاوتې دي) له (جانبه د) الله او مغفرت دی او رحمت دی.

تفسیر: له دې نه پخوا یې مسلمانانو ته د خطا او ناپوهی د قتل په نسبت عتاب او تنبیه فرمایلې وه، نو هسې احتمال کېدی شو چې څوک به له زړه «جهاد» ونشي کولی، ځکه چې مجاهدینو ته داسې پېښې ډېرې ورپېښېږي، نو ځکه یې د مجاهدینو د فضیلت بیان وفرمایه، او دوی ته یې د «جهاد» رغبت ورکړ.

ددې آیت خلاصه دا ده چې په ګوډو، شلو، ړندو، ناروغو او معذورو خلقو باندې د «جهاد» حکم نشته، باقي په نورو ګردو مسلمانانو کې د مجاهدینو درجې داسې لوېې دي، چې د «جهاد» تارکین له سره هغسې درجې نه لري، اګر که هغوی هم جنتیان دي، له دې څخه دا ښکاره شوه، چې «جهاد» فرض کفایي دی، او فرض العین نه دی، یعنې که د مسلمانانو یو تعداد د جهاد لپاره کفایت وکړي، او په هغوی باندې ضرورت رفع شي، نو پر «جهاد» نه کوونکو باندې هیڅ یوه ګناه نه اوړي، او که نه دوی ټول ګناهګاریږي.

وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿٩٦﴾

او دی الله ښه ښنونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: یعنې حق تعالی غفور او رحیم دی، د «جهاد» کوونکو په باره کې د اجر مغفرت او رحمت هغه وعدې چې شوي دي؛ خامخا پوره کوي، یا دا که د مجاهدینو له خوا کوم مسلمان سړی په ناپوهی سره ووژل شو، نو دوی به حق تعالی معافوي، نو د دې اندېښنې له امله تاسې له جهاد څخه مه ستنېږئ !.

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ ظَالِمِي أَنفُسِهِمْ قَالُوا فِيمَ كُنتُمْ ۖ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ
فِي الْأَرْضِ ۚ قَالُوا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللَّهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا فِيهَا ۚ فَأُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ
وَسَاءَتْ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾ إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيعُونَ
حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴿٩٨﴾ فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَن يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ
عَفُوًّا غَفُورًا ﴿٩٩﴾

بېشکه هغه کسان چې وفات کړي وي دوی لره ملائکو (د مرګ) په داسې حال کې چې وي دوی ظلم کوونکي په ځانونو خپلو، وايي ورته (ملائکې): په کوم حال کې وئ تاسې (په خپلوديني چارو کې؟) وايي دوی چې: وو مونږ ضعيفان کړی شوي په ځمکه کې (د کفارو په لاس، بيا ملائکې ورته) وايي چې: آيا نه وه ځمکه د الله ارته (پراخه)؛ پس چې هجرت کړی وای تاسې په دې (ځمکه کې)، نو دا (تارکان د هجرت) ځای د دوی دوزخ دی، او ناکاره ځای د ورتلو دی (دا دوزخ). مګر (نه عذابيږي) هغه څوک چې په رښتيا سره ضعيفان دي له نارينه وو او له ښځو او له ماشومانو چې نه توانيږي (او نه لري هيڅ) حيله (تدبير) او نه پيژني دوی لاره (د چېرې تللو له دار الحربه). پس دا عاجزان (چې دي) ښايي چې الله (يعني هيله ده له الله چې) عفوه وکړي (ګناهونو د) دوی نه، او دی الله ښه عفوه کوونکی (د معذورانو) ښه بخښونکی (د خطياتو).

**تفسير:** د آيت خلاصه داده «هغه کسان چې پر خپلو ځانونو باندې ظلم کوي، يعنې له کافرانو سره يو ځای اوسيږي، او هجرت نه کوي، نو پرښتې به له دوی څخې د ځنکدن په وخت کې پوښتنې کوي، چې په کوم دين وئ تاسې؟» دوی به وايي چې: «مونږ مسلمانان يو، مګر په دنيا کې مو د ضعف او کمزورۍ له امله د دين خبرې نشوې کولی»، نو بيا پرښتې ورته ووايي چې: «د الله تعالی ځمکه خو ډېره پراخه او ارته وه، او ستاسې له واکه (اختياره) هم دا پوره وه، چې له هغه ځايه مو هجرت کړی وای»، نو د هسې خلقو ځای دوزخ دی.

هو ! هغه کسان چې په رښتيا سره ضعيفان دي، لکه ښځې او ماشومان چې نه هجرت کولی شي، او نه هغوی ته د هجرت تدبير او لاره معلومه وي، نو دوی د معافی وړ دي.

**فائده:** له دې څخه راښکاره شوه: په هر هغه ملک کې چې مسلمانان په ښکاره ډول سره شرعي ژوندون نشي کولی، له هغه ځايه هجرت کول پر دوی باندې فرض دي، پرته له هغه کسانو چې بيخي بې وزله او معذوران دي، نور هيچا ته اجازه نشته، چې هلته پاتې شي.

وَمَن يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً ۚ وَمَن يَخْرُجْ
مِن بَيْتِهِ مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ ۗ
وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٠٠﴾

او هر څوک چې وطن پريږدي او (او لاړ شي) په لاره د الله کې، نو وبه مومي (دی) په ځمکه کې (په مقابل د هجرت کې) د آرامی ځايونه ډېر، او پراخي (د روزۍ)، او هر څوک چې ووځي له کوره خپله په داسې حال کې چې هجرت کوونکی وي طرف د الله او رسول ته (جهاد، علم، او نورو مشروعو امورو ته) بيا ومومي (لاندې کړي) ده لره مرګ (بهر له کوره)؛ نو په تحقيق واقع شو اجر (ثواب) د ده پر الله باندې، او دی الله ښه بخښونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: په دې آیت کې د هجرت ترغیب دی، او مهاجرینو ته تسلي او ډاډینه ورکوله شي، یعنې هر هغه څوك چې خاص د الله تعالی لپاره هجرت کوي، او خپل وطن (هیواد) پرېږدي (او د جهاد یاعلم یا حج یا اطاعت یا قناعت یا زهد یا حلال او طیب رزق لپاره سفر کوي) نو د ده د هستوګنې لپاره به ډېر ځایونه پیدا کیږي، او د ده په روزی او خوړو کې به ډېره پراخي راشي، نو د هجرت کولو په وخت کې له هسې خبرو ځنې مه ویرېږئ ! چې مونږ به چېرې اوسیږو؟ او څه شی به خورو؟ او له دې ځنې هم اندېښنه مه کړئ ! نه چې په لاره کې مړه شو، او نه چې د دې لوري او هغه لوري له دواړو څخه بې برخې پاتې شو، ځکه چې په هسې صورت کې هم د هجرت پوره ثواب در رسیږي، او موت خو پوره په خپله نېټه راځي، او له خپل مقرر وخت څخه وړاندې او وروسته کیږي نه.

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُبِينًا ﴿١٠١﴾

او کله چې سفر کوئ تاسې په ځمکه (په ملکونو) کې پس نشته پر تاسې هیڅ ګناه (وبال) په دې کې چې څه لنډوالی وکړئ تاسې له لمانځه (له رباعي څخه، نه له ثلاثي او ثنايي نه) که ویرېدئ تاسې له دې چې په فتنه کې به واچوي (ضرر به ورسوي) تاسې ته هغه کسان چې کافران شوي دي، بېشکه چې کافران دي تاسې لره دښمنان ښکاره.

تفسیر: یعنې کله چې د «جهاد» او د نورو احکامو لپاره سفر کوئ او له کافرانو ځنې (چې ستاسې صریح دښمنان دي) ددې خبرې وېره وي، چې دوی به فرصت ومومي او تاسې به ورېروي (تکلیف کړي)؛ نو خپل لمونځونه لنډ کړئ ! یعنې هر هغه لمونځ چې تاسې په حضر کې څلور رکعته کاوه، او س هغه دوه رکعته وکړئ !.

فائده: د کافرانو د ضرر رسولو وېره په هغه وخت کې موجوده وه؛ چې دا حکم نازل شو، کله چې دا وېره له منځه ورکه شوه، نو بیا هم ځمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم تل په سفرونو کې خپل (رباعي) لمونځونه قصر کول، او اصحابو ته یې هم د قصر په نسبت تأکید فرمایه، اوس هم په مسافرۍ کې د قصر کولو حکم دی، دا ذکر شوې وېره وي که نه وي، ځکه چې دا د الله تعالی فضل او مهرباني ده، او ښایي چې په ډېره خوښۍ سره ومنله شي، لکه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حدیث کې هم داسې ارشاد شوی دی.

وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلَاةَ فَلْتَقُمْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا أَسْلِحَتَهُمْ فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِنْ وَرَائِكُمْ وَلْتَأْتِ طَائِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُمْ مَيْلَةً وَاحِدَةً

او کله چې اوسې ته (ای محمده !) په دوی کې (د دښمنانو د وېرې په وخت کې)؛ پس اقامت وکړې ته دوی ته د لمانځه (نو لښکر خپل دوه طائفې کړه) پس ودې دریږي یوه طائفه له دوی څخه له تاسره، او وادې خلي دا (لمونځ کوونکي) وسلې خپلې، نو کله چې سجده وکړه (دوی د دوه رکعتي په اول رکعت کې او د درې رکعتي او څلور رکعتي په دویم رکعت کې) پس شي دې دوی له وروسته ستاسې، او رادې شي طائفه بله چې نه وي کړی لمونځ دوی؛ پس لمونځ دې وکړي دوی له تا سره، او وادې خلي دوی (هم اسباب د) بیدارۍ خپلې (او د ځان د مدافعې له دښمنه) او وسلې خپلې، خوښوي هغه کسان چې کافران شوي دي (دا) که په یو ډول (طریقه)

سره غافلان شئ تاسې له وسلو خپلو څخه، او له اسبابونو خپلو څخه، څو حمله وکړي دوی پر تاسې باندې حمله یوه.

**تفسیر:** پخوا د سفر د لمانځه بیان وو، اوس د خوف د لمانځه بیان دی، یعنې د کافرانو د لښکرو په مقابله کې دې د مسلمانانو لښکر دوه برخې شي !، یوه برخه دې د دښمن مخ ته ودریږي ! او بله برخه دې له امام سره نیم لمونځ اداء کړي !، او بیا دې دوی د دښمن مخې ته لاړ شي !، او هغه بله برخه خلق دې راشي !، او له امام سره دې هغه پاتې لمونځ اداء کړي !، او د امام له سلام ګرځولو څخه وروسته دې دواړه ډلې د خپلو لمونځونو پاتې برخې یواځې یواځې ادا کړي !، که د ماښام لمونځ وي، لومړۍ ډله دې دوه رکعته او دویمه ډله دې یو رکعت لمونځ له امام سره وکړي !، او په داسې حالت کې د لمانځه په منځ کې تګ راتګ معاف دی، او د توري، ځغرې، ډال، او د جنګ د نورو سامانونو د ځان سره لرل هم د رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم ارشاد دی، او دا د دې لپاره چې کفارو ته کومه موقع په لاس ور نه شي، او یو ځلې ګرد سره په ګډه حمله او یرغل را نه وړي.

وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ ۖ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ۗ

او نشته هیڅ ګناه (وبال) پر تاسې باندې که چېرې وي په تاسې باندې څه ضرر (تکلیف) له بارانه یا وئ تاسې ناجوړه چې کېږدئ تاسې وسلې خپلې، او ونیسئ (په هر حال کې اسباب) د بیدارۍ خپلې (د خپل ځان د مدافعې لپاره له دښمنه).

**تفسیر:** که د باران یا رنځورۍ یا د کمزورۍ له سببه د وسلو اخیستل او چلول مشکل وي، نو په داسې حالت کې د هغو د کېښودلو اجازه شته، مګر د خپل ځان ساتنه دې کوي، مثلا ځغره، ډال (توره، تومانچه، ټوپک، ماشینګن او نور) دې له ځانه سره ولري.

**فائده:** که د دښمنانو له وېرې دومره مهلت او فرصت په لاس ورنشي، چې «صلاة الخوف» (د وېرې لمونځ) له پاس ترتیب سره سم اداء کړی شي، نو د جماعت لمونځ دې موقوف کړي، او هر مجاهد دې یواځې یواځې لمونځ وکړي !، که له سپرلۍ (سورلۍ) ځنې هم د ښکته کېدلو موقع ور میسره نشي، همغسې دې سپور (سور) په اشارې سره لمونځ وکړي !، او که دښمنان ورته نږدې وي، او په هیڅ ډول لمانځه ته وزګار نه وي، نو دلته دې لمونځ مؤخر او بیا دې قضایي راوړي.

إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾

بېشکه الله تیار کړی دی لپاره د کافرانو عذاب سپکوونکی.

**تفسیر:** یعنې د الله تعالی له حکم سره سم له تدبیر، احتیاط، او اهتمام څخه کار و اخلئ !، او د الله تعالی فضل ته هیلمند او امیدوار اوسئ !، چې دی به کافران ستاسې په لاس سپک، خوار، او ذلیل کړي، نو له کافرانو ځنې مه ویرېږئ !.

فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ ۚ

بیا کله چې اداء کړئ تاسې لمونځ نو یادوئ تاسې الله (یا) پس کله چې اراده وکړئ تاسې د ګزارلو د لمانځه؛ نو یادوئ تاسې الله په ولاړې، او په ناستې، او پر اړخونو خپلو، (یا) په ولاړې (که روغ یئ) او په ناستې او پر اړخو خپلو (که ناروغه یئ).

تفسیر: یعني که د خوف په وخت کې د تنګۍ او بې اطمینانۍ له امله په لمانځه کې کوم ډول قصور راشي، نو د «صلاة الخوف» له تمامېدلو څخه وروسته په هر وخت او هر حالت کې (ولاړ یئ که ناست یا ملاست) الله تعالی یاد کړئ !، تر دې چې عین د مقاتلې او هجوم او یرغل (حمله) په وخت کې هم، ځکه چې د وخت تعیین او د نورو قیودو رعایت کول د لمانځه په حالت کې وو، چې د زورورو دښمنانو د مقابلې په وخت کې د هغو د اداء کولو له امله تنګي، او بې اطمینانی او د نورو پېښو احتمال کېدی شي، پرته له لمانځه څخه په هر حالت کې بې د و خت له تعیینه هم تاسې الله تعالی یادوئ !، او نه ښايي چې په هیڅ حالت کې د الله له یاده غافل شئ !.

عبد الله بن عباس رضي الله تعالی عنه د دې آیت په آخر کې فرمایلي دي: «هغه څوک چې عقل او حواس یې د کومې پېښې له امله له کاره لویدلې او معذور شوي وي، نو هغه معذور ګڼل کېږی، که نه هیڅوک په هیڅ وخت کې د پاک الله له یادولو ځنې نشي معذور کېدی».

فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ۚ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا ﴿١٠٣﴾

پس کله چې په آرام شوئ؛ نو قائموئ تاسې (سم اداء کړئ سره له ټولو حقوقو) لمونځ !، بېشکه چې لمونځ دی پر مؤمنانو باندې فرض کړی شوی په معلومو اوقاتو کې.

تفسیر: یعني کله چې ذکر شوی خوف لرې او زړونه مو ډاډه شي، نو هر لمونځ چې کوئ ښايي چې د ارکانو له تعدیل، د شرایطو له رعایت، او د آدابو له محافظې او اطمینان سره یې اداء کړئ !، لکه چې د امنیت په حالت کې اداء کولی شي، د زائدو حرکاتو اجازه چې درکړی شوې ده، هغه د خوف په لمانځه پورې مخصوصه ده، بېشکه چې لمونځ په خپل معین او ټاکلي وخت کې فرض شوی دی، نو ښايي په سفر او حضر، په اطمینان او خوف، او په هر حالت کې پخپل ټاکلي وخت کې دې خامخا ادا کړ شي !، داسې نه چې هر کله مو زړه وشي؛ اداء یې کړئ !.

وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ ۖ إِن تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ ۖ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١٠٤﴾

او سستي (بې همتي ای مؤمنانو !) مه کوئ ! په طلب (تعقیب او جنګ) د قوم د کفارو کې، که یئ تاسې چې دردمن کېږئ !، نو بېشکه دوی (هم) دردمن کېږي همغسې چې تاسې دردمن کېږئ، او هیله لرئ تاسې له (جانبه د) الله د هغه (ثواب) چې نه لري دوی (کفار) (یې) او دی الله (په هر شي) ښه عالم ښه حکمت والا، (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: یعني د کفارو په پلټنه (لټونه) او د دوی په تعقیب کې له همت ځنې کار واخلئ ! او څه کوتاهي او سستي پکې مه کوئ، که تاسې ته د دوی له جنګه کوم زخم او درد دررسېدلی دی؛ نو هغوی هم په همداسې تکالیفو کې آخته، او په دې کې له تاسو سره شریکان دي، او وروسته له دې نه هم تاسې له الله جل جلاله څخه د هسې شیانو امیدوار یئ !، چې دوی له سره په هغو کې څه برخه نه لري، یعني په دنیا کې په کفارو باندې برې، او په آخرت کې لوی ثواب.

الله تعالی ته ستاسې ټول مصالح او اعمال ډېر ښه معلوم دي، او د الله تعالی د هر حکم (چې په هغه کې ستاسې دیني او دنیوي ډېر مصالح او خورا حکمتونه دي) امتثال او منل غنیمت او لوی نعمت وګڼئ.

إِنَّا أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ ۚ وَلَا تَكُن لِّلْخَائِنِينَ خَصِيمًا ﴿١٠٥﴾

بېشکه مونږ نازل کړی (لېږلی) مو دی تاته (ای محمده !) کتاب (قرآن) په حقه سره لپاره د دې

له خپلو اصحابو سره جرګه او مشوره وکړه، د رسول الله مبارک رایه داسې وه، چې پخپله په مدینې منورې کې اسلامي مجاهدین پاتې شي، ځکه چې په هم هغه ځای کې هم د مکې معظمې له کفارو سره په ډېر آسانۍ سره غزا کېدی شي،او د دې فکر تایید د دوی له یوه خوب څخه هم شوی وو.

دا لمړی ځل وو چې له رئیس المنافقین (عبد الله بن أُبيّ) څخه هم رایه واخیسته شوه، چې د ده رایه هم د رسول الله مبارک له رایې سره موافقه وه، مګر ځینې هغه پر جوش مسلمانان چې د بدر په غزا کې نه وو شامل شوي، او د غزا او شهادت په درجې موندلو پسې مضطرب وو، په دې باندې ټینګ شول چې مونږ ته ښایي چې له ښاره د باندې ووځو، او هلته له کفارو سره مقابله وکړو، تر څو دښمن د ضعف او د وېرې ګمان پر مونږ باندې ونه کړي، د آراوو اکثریت په وتلو باندې غوڅه شو.

په همدې شور ماشور کې رسول الله صلی الله علیه وسلم کورته ولاړ او ځغره یې واغوسته، او خپله وسله یې واخیسته، او د غزا په نیت د باندې ووت، د پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم په غیاب کې ځینو کسانو ته هسې یو خیال پیدا شو چې «مونږ ولې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خیاله مخالف دوی ته عرض وکړ، چې د غزا لپاره د باندې ووځي !» نو ځکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له کور څخه د راوتلو په وخت کې د دوی په لوړ حضور کې عرض وشو: «یا رسول الله ! کله چې ستاسې پاکه اراده پر دې باندې ده چې هم دلته مدافعه وکړو، نو راځئ چې هم دلته سنګر ونیسو»، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «یو نبي ته دا خبره مناسبه نه ده، کله چې دې ځغره واغوندي، او وسله په لاس واخلي، او غزا ته خپله ملا وتړي، بیا بې له قتاله وسله له ځانه لرې کړي».

کله چې دوی له مدینې منورې څخه د باندې تشریف یووړ، نږدې زر تنه مجاهدین له دوی سره وو، مګر عبد الله بن أُبَيّ نږدې سره له (۳۰۰) سړیو (چې ځینې مسلمانان هم په کې وو) له لارې بېرته وګرځېدل، او ویل به یې: «کله چې ده زما په خبره باندې غوږ کښېنښود، او زما په مشوره یې عمل ونه کړ، نو مونږ هم دې ته اړ نه یو چې وجنګېږو، او خامخا خپل ځانونه مړه کړو»، ځینو مشرانو (ابن أبَيّ) وپوهاوه چې «راځه ! چې غزا ته ولاړ شو ! چېرې ځې» خو (ابن أبي) ونه منله، او ټول سره ستانه (واپس) شول.

په پای کې رسول الله مبارک سره له (۷۰۰) مجاهدینو د جنګ ډګر (میدان) ته ورسېدل، او رسول الله مبارک بالذات د لښکرو صفونه وتړل، او هر یو ټولی یې په مناسب ځای کې وټاکه (مقرر کړه)، او هغوی ته یې خپل وظیفې وروښودلې، او امر یې وفرمایه: «تر څو چې زه د جنګ حکم درنه کړم ؛ تاسې مه جنګېږئ !، او په خپلو ځایونو کې منتظر اوسئ !».

په دې منځ کې د عبد الله بن أُبَی د جلا والي او د تحریک په اثر د دوو قبیلو بنو حارثه او بنو سلمه په زړونو کې څه کمزوري ورپیدا شوه، او د مسلمانانو د لږ تعداد له کبله یې زړونه سره وربېږدېدل، او داسې خیال ورپیدا شو چې د جنګ له ډګره ځان بېرته وکاږي، مګر «حق جل وعلی شأنه » د دوی لاس ونیوه، او له دوی سره یې مرسته وکړه، او زړونه یې ټینګ کړل، او دا یې ور په زړه کړ، چې د مسلمانانو اعتماد او ډاډینه ښایي یواځې په الله تعالی باندې وي، او ښایي تل تر تله د الله تعالی په اعانت او نصرت باندې متوکلان وي، تعداد، سامان، لوازم اوتجهیزات او نور دومره اهمیت نه لري، کله چې الله تعالی څوک غواړي چې مظفر او منصور وګرځوي؛ نو له ګرد ساز او سامان څخه یې مستغني او بې پروا کوي، او غیبي تایید «فتح مبین» ور په برخه کوي، لکه چې د «بدر» په غزا کې داسې وشو.

نو مسلمانانو ته ښایي چې تل له الله تعالی څخه وویرېږي، څو د الله تعالی له جانبه دوی ته لا انعام او احسان او د ډېر شکر کولو موقع په لاس ورشي، د «بدر» دغزا پوره تفصیل د «الأنفال» په سورت کې راځي، د هغه په فوائدو کې دې وکتل شي.

تنبيه: له دوو فرقو څخنې مراد «بنو حارثه» او «بنو سلمه» دي، اګر که په دې آيت کې دوی ته نرئ شانته «اخطار» ورکړی شوی دی، مګر ددې قبيلې څينو مشرانو به فرمايل چې: «د دې آيت په نه نازلېدو مونږ نه وو خوښ، بلکه پر نزول يې خوښ يو» ځکه چې ﴿وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا﴾ زېرى د ده له وېرې څخنې لوى دى».

﴿إِذْ تَقُولُ لِلْمُؤْمِنِينَ أَلَن يَكْفِيَكُمْ أَن يُمِدَّكُمْ رَبُّكُم بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُنزَلِينَ﴾ (۱۲۴)

(ياد کړه ای محمده !) کله چې ويل تا مؤمنانو ته چې: آيا کافي (بس) به نه شي ستاسې دا چې مرسته (مدد) وکړي له تاسې سره رب ستاسې په درې زرو له پرښتو چې رالېږلی شوي وي (له آسمانه).

تفسير: يعنې چې له آسمانه خاص د همدې کار لپاره نازل کړی شوي وي، د اکثرو علماوو په نزد دا راجح دی، چې دا واقعه د «بدر» د غزا ده، کله چې مسلمانانو ته د کفارو د جمعيت او کثرت او اسلحې او تجهيزاتو له ليدلو څخنې انديښنې او تشويش پيدا شو، نو رسول الله مبارک د دوی د تسلی لپاره داسې وفرمايل، او داسې وشوه، لکه چې د پرښتو مرسته (مدد) له اسمانه ورسېده، د «الأنفال» په سورت کې ددې مفصل بيان راځي.

﴿بَلَىٰ ۚ إِن تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ﴾ (۱۲۵)

هو ! (درې زره بس کيږي) ! که تاسې صبر وکړئ او ووېرېږئ (له الله) او راشي مشرکان پر تاسې؛ په دغه ساعت (بې له ټاله يو ناڅاپه) مرسته (مدد) به وکړي له تاسې سره رب ستاسې په پنځو زرو سره له پرښتو چې علامې لرونکې به وي.

تفسير: څرنګه چې په «بدر» کې د کفارو شمېر يو زر ته وو، لومړی يې د هغه په تناسب د يو زر پرښتو وعده وفرمايله، لکه چې د «الأنفال» په سورت کې راځي، بيا يې د مسلمانانو د وېرې د لرې کولو لپاره د دوی شمېر درې چنده وفرمايه، ځکه چې د کفارو شمېر د مسلمانانو د شمير په نسبت درې چنده وو.

وروسته له دې نه د (شَعبي) له روايت سره سم کله چې مسلمانانو ته دا خبره ورسېده چې (کرز بن جابر) د لوی کومک سره د مشرکانو په مرسته راځي، نو يو نوې اضطراب پيدا شو، په دې وخت کې الله تعالى د زيات تسکين لپاره وعده وفرمايله: که له صبره او تقوی څخه کار واخلئ، نو مونږ به پنځه زره پرښتې ستاسې د مرستې لپاره درولېږو، که د مشرکانو مرسته ناڅاپه وروړسېده، نو بيا هم څه انديښنه مه کوئ ! ځکه چې الله تعالى سم د لاسه په عين وخت کې بيا تاسې سره مرسته کوي.

ښايي چې د پنځو زرو شمېر ددې له امله ويلی شوي وي، چې لښکر په پنځو برخو ويشلی کيږي، نو هرې برخې ته يو يو زر مرسته ورکوله کېده، څرنګه چې د (کرز بن جابر) مرسته ونه رسېده، نو ځکه څينې وايي چې: د پنځو زرو وعده هم پوره نه کړي شوه، ولې چې هغه وعده په ﴿وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا﴾ پورې معلقه وه.

د څينو قول داسې دی چې پنځه زره پرښتې نازلې شوې. والله أعلم.

﴿وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوبُكُم بِهِ ۗ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ﴾ (۱۲۶)

او نه ده ګرځولې الله دا مرسته مګر لپاره د خوشالتيا ستاسې، او لپاره د دې چې تسکين ومومي زړونه ستاسې په دې سره، او نه ده مرسته مګر له (جانبه د) الله چې ښه غالب قوي دی (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

**تفسیر:** یعني دا ګرد غیبي سامان په فوق العاده ډول سره د ظاهري اسبابو په صورت یواځې دې لپاره مهیأ کړی شوی دی، چې ستاسې له زړونو څخه وېره او اضطراب لرې شي، سکون او اطمینان ستاسې په برخه شي، که نه د الله تعالی مرسته په هسې شیانو باندې محدود او مقصور نه دی، او نه له اسبابو او سامان سره څه اړه او تعلق لري، که الله تعالی اراده وفرمایي، نو یواځې پخپل قوي قدرت سره بې د پرښتو له اشتراکه هم تاسې بریالي کوي، یا بې ستاسې له جهاده او ربړ ګاللو (تکلیف تېرولو) څخه کافران نا مراد او زیانمن کوي، یا له یوې پرښتې څخه همدا کار اخلي، چې اوس یې له (۵۰۰۰) څخه اخلي.

لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا۟ خَآئِبِينَ ﴿١٢٧﴾

(الله کومک در کړ) څکه چې هلاک کړي څیني له هغو کسانو چې کافران شوي دي، یا یې ذلیل (خواروزار) کړي، پس بېرته ولاړ شي (په ماتې سره) محروم.

**تفسیر:** یعني د پرښتو له لېږلو څخه ستاسې امداد مقصود وو، چې ستاسې زړونه ډاډه او کلک شي ! او د الله تعالی له جانبه پوره بشارت او اطمینان ومومئ ! او په سکون سره په ډېره بهادرۍ د دښمن مقابله وکړئ ! چې له هغه څخه دا غرض وو چې دا د کفارو زور مات شي، او د دوی مټونه پرې شي او څه نومیالي (نامور) ووژلی شي، او څه ترې په ذلت سره بندیان شي.

لَيْسَ لَكَ مِنَ ٱلْأَمْرِ شَىْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿١٢٨﴾

نشته تا لره له امره هیڅ شی (بلکه الله اختیار لري دهر شي) یا به رجوع وکړي (الله په قبلولو د توبې سره) په دوی باندې، یا به عذابوي (الله) دوی، پس بېشکه دوی ظالمان دي.

**تفسیر:** د (احد) په غزا کې (۷۰) تنه لوی اصحابان شهیدان شوي وو، چې په هغوی کې څمونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم تره سید الشهداء حمزه رضي الله تعالی عنه هم وو، مشرکانو په ډېره وحشیانه ډول سره شهدا مثله کړي هم وو، یعنې پوزې، غوږونه، او نور اعضاء یې ترې پرې او ګېډې یې ورڅیرې کړې وې، تر دې چې د حمزه رضي الله تعالی عنه زړه او ځیګر هم هندې (د أبو سفیان ښځې) وایستل، او وېې ژووول، ددې غزا مفصله واقعه به وروسته راشي، لنډه یې دا چې نبي کریم «علیه افضل الصلاة والتسلیم» ته په دغې غزا کې د سترګو د بد نظر ضرر ورسېد، او له مخنیو څلور غاښونو څخه لاندی ښی غاښ په شهادت ورسېد، د (خول) کړۍ یې ماتې شوې، او دده مبارک په مخ کې ننوتې، او د ده مبارک تندی زخمي شو، او دده مبارک وجود په وینو تک سور شو، په همدې وخت کې د ده مبارک پښه هم وښوییده، او پر څمکه ولوېد، کافرانو دا مشهوره کړه (ان محمدا قد قتل)، «بېشکه محمد ووژل شو»، د دې خبرې له اورېدلو څخه ګرد مسلمانان وارخطا شول، په دغه وخت کې د ده له مبارکې خولې څخه دا جمله ووته: «هغه قوم به څنګه فلاح ومومي چې د خپل هغه رسول مخ یې په وینو سور (ژوبل) کړ، چې دوی د الله جل جلاله په لوري بولي؟»، هو ! دمشرکانو د وحشیانه شدائدو او ظلمونو دلیدلو په اثر دوی متأثر شول، او د کفارو څو نومیالیو (نومورو) متجاوزینو ته یې د ښېرا کولو اراده وفرمایله.

څه موده وروسته الله جل جلاله دوی ګرد سره په خپلو کړو پښېمانه کړل، او د اسلام په سر تېرو لښکرو کې شامل شول، الغرض په ﴿لَيْسَ لَكَ مِنَ ٱلْأَمْرِ شَىْءٌ﴾ کې یې محمد صلی الله علیه وسلم ته تنبیه وفرمایله، چې بنده لره اختیار نشته او نه د هغه علم محیط دی، د هر شي اراده چې الله تعالی وفرمایي هم هغه کوي، که څه هم کافران ستاسې دښمنان دي، او پر تاسې ظلم کوي، خو که الله جل جلاله اراده وفرمایي هغوی ته هدایت کوي، او که یې اراده وشي عذاب ورکوي، نو ته له خپله ځانه هغوی ته ښېرا مه کوه !.

په ځينو روايتونو کې د دې آيتونو په شان نزول کې بل رنګ معلومېږي چې دلته د هغوی د تفصيل د ليکلو ځای نشته، په «فتح الباري» کې څو ځايه پر هغه باندې پوره بحث شوی دی، فليراجع.

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲۹﴾

او (خـاص) الله لره دي هر هغهٍ څه چې په آسمانونو کې دي او هر څه چې په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې ملکا خلقًا او عبيداً)، بخښنه کوي الله هر هغه چاته چې اراده وفرمايي د بخښنې يې، او په عذابوي الله هر چا ته چې اراده وفرمايي د عذاب يې، او الله ښه بخښوونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰٓوا

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) مه خورئ سود !

اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً ۠

په دې حال چې دوه چنده پر دوه چنده وي.

تفسير: د دې مطلب داسې نه دی چې لږ سود اخلئ ! خو دوه چنده او درې چنده يې مه اخلئ !؛ خبره داده چې د جاهليت په زمانه کې به خلقو سود او سوايي اخيستل، لکه چې نن ورځې په عامو او اکثرو بينکونو کې رواج دی، همدا صورت يې په ﴿اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً﴾ سره تعبير وفرمايه، يعنې اول خو سود مطلقا حرام او قبيح دی، او بيا دا صورت خو يې ډېر زيات شنيع او بد دی، لکه چې څوک ووايي: «خانه ! په مسجد کې ښکنځلې مه کوه !» نو ددې خبرې مطلب داسې نه کيږي، چې له مسجد د باندې د ښکنځلو اجازه شته، بلکه داسې الفاظ د زيات تقبيح او تشنيع په موقع کې ويل کيږي.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۳۰﴾

او ووېرېږئ له الله څخه ښايي چې په مراد به ورسيږئ (خلاص به شئ تاسې د الله له قهره).

تفسير: يعنې په سود خوړلو کې هيڅ نيکي نشته، بلکه ښېګڼه (ښه والی) په دې کې ده، چې له الله جل جلاله څخه ووېرېږئ ! او د سود خوراک پرېږدئ.

وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْٓ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۱﴾

او ووېرېږئ ! له اوره چې تيار کړی شوی دی لپاره د کافرانو.

تفسير: يعنې سود خور دوزخ ته ځي، چې هغه اصلا د کفارو لپاره جوړ کړی شوی دی.

وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾

او حکم ومنئ د الله او (حکم ومنئ) د رسول (د الله)، لپاره د دې چې پر تاسې رحم وکړی شي.

تفسير: د رسول الله صلی الله عليه وسلم د حکم منل هم په حقيقت کې د الله جل جلاله حکم منل دي، ځکه چې همده حکم راکړی دی، چې مونږ د ده د رسول الله صلی الله عليه وسلم حکم هم ومنو، او د هغه پوره اطاعت وکړو،

وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿١١٦﴾

او هر څوک چې شریک ونیسي (کوم شی) له الله سره؛ نو په تحقیق ګمراه شوی دی په ګمراهی لرې (له حقه).

**تفسیر:** یعنې له هدایت څخه لرې ولوېد، ځکه چې له الله جل جلاله څنې په صراحت سره منحرف شو، او د پاک الله په مقابل کې یې خپل معبود بل څوک وګرځاوه، او د شیطان مطیع شو، او د الله تعالی له اطاعت او د هغه له رحمت څنې بیخې مستغني شو، نو هر څوک چې دومره لرې ولویږي، هغه به په څه ډول سره د الله تعالی د رحمت او د ده د مغفرت مستحق شي ! بلکه د داسې سړي مغفرت نبايي له حکمت څنې مخالف دی.

إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا وَإِن يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا ﴿١١٧﴾ لَّعَنَهُ اللَّهُ

نه بولي دوی (عبادت نه کوي دا مشرکان) بې الله نه مګر د ښځو، او نه بولي (عبادت نه کوي دوی) مګر د شیطان سرکښ چې لرې کړی دی الله (له رحمته خپله).

**تفسیر:** یعنې هغه شیان چې دغو مشرکانو له الله تعالی څنې پرته خپل معبودان ګرځولي دي، په هغو کې هغه بتان هم شامل دي، چې دوی پر هغو باندې د ښځو غوندې نومونه ایښي دي، لکه «عزی، مناة، نائلة، او نور» او که حقیقت ته وګورئ؛ نو دغه مشرکان د ملعون او سرکښ شیطان عبادت کوي، او همدې شیطان دا مشرکان تېرایستلي دي، او مشرکان په دې بت پرستی کې د شیطان امر مني، او د هغه زیاته خوښي ځان ته حاصلوي، په دې سره د مشرکانو انتهایي ضلالت او جهالت ښکارول مقصود دي، وګورئ !.

اول خو له دې څخه بل لوی ضلالت شته؟ چې بې له الله جل جلاله بل څوک خپل معبود وګرځوي؟، نو بیا چې معبود یې ګرځولی دی، څه شی دی؟ تیږې؛ چې په هغو کې هیڅ قسم حس او حرکت هم نشته، او د ښځو په نومونو سره هم موسوم دي، او د چا په وینا او ښوونه؟، د هغه شیطان په لمسونه چې د پاک الله له درباره مردود رټلی او ملعون شوی دی، نو آیا د دې ضلالت او جهالت بل کوم نظیر چېرې پیدا کېدی شي؟ او خورا (ډېر) لوی احمق هم دا خبره منلی شي؟

وَقَالَ لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿١١٨﴾

او وویل (شیطان) چې خامخا به ونیسمه خامخا زه (ای الله !) له بندګانو ستا نه یوه برخه مقرره کړی شوې.

**تفسیر:** یعنې کله چې شیطان د سجدې په نه کولو سره ملعون او مردود شو، نو په هغه وخت کې یې وویل: «زه خو تباه او فنا شوم، مګر ستا له بندګانو د آدم علیه السلام له اولادې څنې به زه یو معلوم مقدار او لویه برخه لمسوم او خطا باسم، او له خپله ځانه سره به یې جهنم ته بیایم»، لکه چې په «الحجر» او په «بني اسرائیل» او نورو سورتونو کې مذکور دي، مطلب یې دا دی چې شیطان له متمرد او ملعون کېدلو څخه علاوه خو له اولې ورځې راهیسې د ګردو بني آدمانو دښمن او بدي غوښتونکی دی، او خپله دښمني یې په صاف ډول سره ښکاره کړېده.

د مقررې حصې اخیستلو یوه معنی دا هم ده، چې ستا بندګان به پخپلو مالونو کې ما لره هم یوه برخه ټاکي (مقرروي)، لکه چې خلق بتانو، جنیاتو، او پرته له الله نورو ته نذرونه او نیازونه ورکوي.

وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ؕ

او زه به هرو مرو (لازماً) ګمراه کړم دوی، او لازماً زه به په باطلو امیدو کې خامخا واچوم دوی، او لازماً زه به امر وکړم خامخا دوی ته چې پس لازماً څیروي به دوی خامخا غوږونه د چارپایانو، او زه لازماً امر وکړم دوی ته؛ پس لازما تغییر به ورکړي دوی خامخا پیدایښت د الله ته.

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې زما په برخه کې راځي؛ دوی له حقې لارې څخه ګمراه کوم، او د دوی په زړونو کې به د دنیوي ژوندون او د فاني دنیا مینه اچوم، او دوی به له قیامت، حساب او کتاب، او نورو اخروي امورو څخه غافل کوم، او دا خبره به دوی ته ورښیم چې د څناورانو غوږونه څیري کړي، او د بتانو په نامه یې خوشې کړي، او د الله تعالی پیدا کړي صورتونه او د هغو مقررې کړې څېرې واړوي.

**فائده:** د کافرانو دستور وو چې د غوا خوسی، د مېږې (ګډې) وُرى، او د اوښ جونګی به یې د بت په نامه کول، او د هغو غوږونه به یې څیرول، او په غوږونو کې به یې نښې اچولې، بیا به یې سرخوشي پرېښودل.

د صورت بدلول لکه خصي کول، یا په ستنو سره د بدن سوري کول، او په هغه سره شنه یا بل ډول خالونه ایښوول، یا زرغون داغ ورکول، یا د وړوکي پر سر باندې په کوم اسم او رسم سره کمڅۍ او بل رنګ ویښتان د بل چا په نامه پرېښوول دي (یا په منهیاتو کې د خپلو اندامونو خوځول، یا د حلالو تحریم یا د حرامو تحلیل او نور) چې په مونږ مسلمانان باندې لازم دي؛ چې له دغو ګردو کارونو څخه خپل ځانونه وژغورو (وساتو)، د ږیرې خرییل هم په همدې تغییر کې داخل دي، او د الله تعالی هر څومره احکام چې دي؛ په هر یوه کې تغییر کول ډېره سخته خبره ده، هر هغه شی چې الله تعالی حلال کړی دی، د هغه حرامول، یا یې حرام ګڼل؛ انسان له اسلام څخه باسي.

نو هر څوک چې په داسې خبرو کې مبتلا وي؛ په یاد دې ولري، چې د هغه شیطان په همغه ټاکلې (مقرره) برخه کې داخل دی، چې ذکر یې اوس تېر شو.

وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيْهِمْ ؕ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۱۲۰﴾ اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُوْنَ عَنْهَا مَحِيْصًا ﴿۱۲۱﴾

او هر څوک چې ونیسي شیطان دوست بې له الله؛ نو په تحقیق زیان یې وکړ زیان ښکاره. وعده کوي (شیطان) له دوی سره، او په باطلو امیدونو کې غورځوي دوی، او نه کوي وعده له دوی سره شیطان مګر په فریب، دغه (تابعان د شیطان) ځای د دوی جهنم (دوزخ) دی، او نه به مومي دوی له دې دوزخه هیڅ ځای د تېښتې (او خلاصي).

**تفسیر:** یعنې کله چې د شیطان خباثت او شرارت، او د ده د عدوات کیفیت ښه معلوم شو؛ نو اوس په دې کې هیڅ شک پاتې نه شو، هر هغه څوک چې له خپل حقیقي معبود څخه منحرف او د شیطان موافقت کوي، په سختو نقصانونو کې لوېږي، د شیطان ټولې وعدې او امیدونه محض فرېب دی، او نتیجه یې داسې کیږي چې د دوی د ګردو د هستوګنې ځای دوزخ دی، او له دوزخ څخه د دوی د وتلو هیڅ یو امکان نشته.

وَالَّذِينَ اٰمَنُوا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِينَ فِيهَا اَبَدًا ؕ وَعْدَ اللّٰهِ حَقًّا ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيلًا ﴿۱۲۲﴾

او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) نو ژر به داخل کړو مونږ دوی په جنتونو کې چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د دوی ویالې، چې همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو) کې تل تر تله، وعده کړېده الله حقه (وعده)، او څوک دی زیات صادق (رښتین) له الله نه په خبره (او وعده) کې.

تفسیر: یعنې هغه خلق چې د شیطان له فساد ځنې محفوظ دي، او د الله تعالی له ارشاده سره سم یې ایمان راوړی دی، او ښه عملونه یې کړي دي، دوی به تل په داسې جنتونو او باغونو کې ښه ژوندون کوي، چې د تل لپاره په کې پسرلی وي، او دا د الله تعالی وعده ده، چې له دې څخه د بل هیچا وعده رښتیا کېدی نشي، نو بیا د هسې رښتیا او پخې وعدې پرېښودل، او د شیطان په دروغو خبرو باندې خطا وتل، څومره ګمراهي او په څه اندازه ځانته ضرر رسول دي؟

لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَا اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ ؕ مَنْ يَّعْمَلْ سُوٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾

نه دی (ثواب او عقاب مرتب) پر امیدونو (ارزوګانو) ستاسې او پر امیدونو (ارزوګانو) د اهل کتابو، (بلکه پر ښو عملونو پورې مربوط دی)، هر څوک چې وکړي ناکاره کار؛ نو جزا به ورکړل شي ده ته په هغه سره، او نه به مومي دغه (ګناهګار) د ځان لپاره بې له الله نه هیڅ ولي (دوست)، او نه مددګار (چې دی له عذابه خلاص کړي). او هر څوک چې عمل وکړي له (ځینو) نېکو (کارونو) له نارینه وو او له ښځو، حال دا چې دی مؤمن وي؛ نو دغه (نېکوکاران) داخل به شي په جنت کې، او ظلم به ونشي په دوی (په اندازه) د نقیر (هم، یعنې پر دوی به هیڅ شي کې هیڅ ظلم نه کیږي).

تفسیر: د کتابیانو یعنې د یهودانو او نصرانیانو دا خیال وو، چې مونږ د الله تعالی خاص بندګان یو، او پر هغو ګناهونو چې نور خلق نیول کیږي؛ مونږ نه نیول کیږو، انبیاء علیهم السلام څمونږ حمایت کوي، او مونږ ته نجات راکوي، او د اهل الاسلام نادانانو به هم داسې خیال کولو، نو الله جل جلاله وفرمایل: «چې نجات او ثواب د چا په امید او خیال موقوف او منحصر نه دی، هر څوک چې بد کوي بد به مومي، او تکلیف به ګالي هر څوک چې وي، د الله تعالی له حساب، کتاب، او عذاب ځنې ځان نشي ژغورلی، او نه یې څوک حمایت او طرفداري کولی شي، پاک الله چې هر څوک ونیسي؛ همغه یې خوشې کوي او نجات ورکوي، لکه چې په همدې لږه او خسیسه دنیا کې الله تعالی رنځ او درد د چا په برخه کړي، بې له الله جل جلاله بل هیڅوک هغه نشي ترې لرې کولی، هر هغه څوک چې ایمان ولري، او نیک عمل وکړي؛ نو هسې کسان به په جنت کې داخلیږي، او د خپلو نېکیو پوره ثواب به مومي.

خلاصه داچې د ثواب او عقاب تعلق له عقائدو او اعمالو سره دی، د چا په امید او ارزو سره هیڅ نشي کېدی، نو داسې امیدونه په لغته وهئ !، او په نېکو کارونو کې زیار (محنت) وباسئ !، او همت وکړئ !.

(نقیر هغه داغ ته وایي چې د خرما د زړي په شا طرف باندې وي).

وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾

او څوک دي ډېر غوره له جهته د دين له هغه چا چې تابع يې گرځولی وي مخ خپل (يا ځان خپل خاص حکم د) الله ته، حال دا چې دی نېکوکار وي، او متابعت يې کړی وي د ملت (دين) د ابراهيم، حال دا چې دی حنيف وو (په حق دين کلک ولاړ وو او له باطل ځنې بيزار وو)، او نيولی دی الله ابراهيم دوست (خاص خپل).

تفسير: پخوا معلومه شوه چې د الله تعالی په نزد يوازې اعتقاد او اعمال اعتبار لري، او خوشې چټې هيلې (بهانې)، اميدونه، او ارزوگانې هيڅ يوه نتيجه نه ورکوي، اهل کتابو او نورو گردو لره همدا کليه قاعده مقرره ده، چې په دې کې اهل د اسلام ته اشاره ده، يعنې د صحابه وو رضي الله تعالی عنهم تعريف او فضيلت او د اهل کتابو مذمت او خرابي ده، اوس په ښکاره ډول سره فرمايي چې په ديانت کې له داسې سړي سره څوک مقابله کولی شي، چې د الله تعالی له حکمونو ځنې غاړه نه غړوي، او په نېکو کارونو پسې له زړه گرځي؟ او په رښتيا سره د ابراهيم عليه السلام د ملت او دين ښه متابعت کوي، چې هغه له گردو ځنې ځان شکولی، او له پاک الله سره يې خپل تعلق او ارتباط ټينگ کړی وو، او پاک الله هم هغه په خپلې دوستۍ او خلت سره غوره کړی وو، ښکاره ده چې دا درې واړه صفتونه په صحابه وو (رضوان الله تعالی عليهم أجمعين) کې د کمال په توگه موجود وو، نه په کتابيانو کې، نو په دې قيودو سره د اهل کتاب هغه ارزو او هيله چې پخوا تېره شوه، ببخي باطله او چټې ثابته شوه.

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطًا ﴿۱۲۶﴾

او (خاص) الله لره دي هر هغه شيان چې په آسمانونو کې دي، او هر هغه شيان چې په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې ملکاً خلقاً وعبيداً)، او دی الله پر هر شي ښه احاطه کوونکی (په خپل علم او قدرت سره).

تفسير: يعنې په ځمکه او آسمان کې څه شيان چې دي سره له اسمانونو او ځمکو د هغو گردو خالق الله تعالی دی، او دغه گرد شيان د پاک الله بندگان، مخلوق، مملوک او د ده جل وعلا شأنه په واک (اختيار) او قبضه کې دي، او پخپل رحمت او حکمت سره له هر چا سره هره معامله چې اراده وفرمايي؛ همغه کوي، پاک الله هيچا ته څه اړه او احتياج نه لري، هيڅوک دې په دې سره ډاډه نشي، او نه دې تېروځي چې زه يې دوست او خليل يم، او د ټولو خلقو د خير او شر دگردو اعمالو په جزا او سزا کې دې هيڅوک هيڅ يو تردد او انديښنه ونه کړي !.

وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ

طلب د فتوی کوي دوی له تانه په باب (د ميراث د) ښځو کې، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې الله فتوی (حکم) درکوي تاسې ته به (باب د) دوی کې، او (بل د) هغه شي (حکم درکوي) چې لوستلی شي پر تاسې په کتاب (قرآن) کې په (باب د) يتيمانو ښځو کې، هغه چې نه ورکوئ تاسې دوی ته هغه (ميراث) چې فرض کړی شوی دی دوی ته، او مينه کوئ تاسې دې کار ته

چې نکاح کړئ تاسې دوی، او (حکم درکوي الله په حق) د ضعیفانو کې له وړو هلکانو نه، او (بل دا حکم درکوي) چې ودرېږئ تاسې په حق د یتیمانو کې په عدل (انصاف) سره (په میراث او مهر کې).

**تفسیر:** ددې سورت په اول کې یې د یتیمانو د حق د اداء کولو تاکید فرمایلی وو، د یتیمو جونو اولیاء لکه د اکا ځوی که پوه شي، چې زه د دې پوره حق اداء کولی نشم، نو دی دې خپل ځان ته نه نکاح کوي !، بلکه بل چاته دې په نکاح ورکړي !، او دی دې د هغې حامي او کومکي (مددګار) شي.

خو له تجربې ځنې مسلمانانو ته دا ور معلومه شوه، چې په ځینو ځایونو کې د جونو په حق کې هم دا بهتر وو؛ چې د خپل «ولي» په نکاح کې راشي، او «ولي» د دې رعایت داسې کوي؛ چې بل څوک یې نه کوي، نو له دې امله مسلمانانو له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د داسې نکاح اجازه وغوښتله، د دې استدعا په نسبت دا آیت نازل شو، او دوی ته اجازه ورکړه شوه، او ویې فرمایل: «هغه ممانعت چې پخوا له دې نه شوی وو؛ هغه خاص په هغه صورت کې وو چې د دوی حق په پوره ډول سره اداء نه کړئ، او د یتیمانو د حق د اداء کولو تاکید یې فرمایلی وو، او که څوک له یتیم سره د ښه سلوک او ښېګڼې په اراده نکاح تړي، نو اجازه ده».

**فائده:** په عربو کې داسې عام دستور وو، چې ښځې، وړوکي او یتیمان به یې له ځینو حقوقو ځنې بې برخې او محروم ګرځول، او دوی ته به یې میراث نه ورکاوه، او ویل به یې چې میراث د هغه چا حق دی، چې له دښمنانو سره وجنګیږي، او له یتیمو جونو سره د دوی اولیاوو نکاح تړله، او د دوی په نفقه، مهر، کسوت او نورو کې یې کمی کولو، او په مالونو کې به یې بېځایه تصرفات کول.

**خلاصه داده:** د الله تعالی حکم واجب الاتباع دی، او د الله تعالی د حکم په مقابل کې د هیچا عقل، فکر، ارزو، دستور، حکم، قیاس، بیخي د اعتبار وړ او قابل کېدی نشي، او د الله تعالی دحکم په مقابل کې د بل چا د خبرو اورېدل او عمل پرې کول او د الله تعالی د حکم پرېښودل صریح کفر او ګمراهي ده، او دا مضمون یې په بلیغو تاکیداتو سره ظاهر او ښکاره کړ، اوس د همغو پخوانیو آیتونو په حواله د ښځو او د یتیمو جونو نکاح په متعلق ځینې نورې مسئلې هم رانښیي، څو چې له دې تاکیداتو څخه وروسته د ښځو د حقونو په ورکولو کې د هیچا هیڅ یوه خبره پاتې نشي.

وَمَا تَفۡعَلُوا۟ مِنۡ خَیۡرࣲ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ بِهِۦ عَلِیمࣰا ﴿١٢٧﴾

او هر څه چې کوئ تاسې له خیر (نېکۍ) پس بېشکه چې الله دی پر هغه ښه عالم (او هغه هم لکه نور اشیاء ورمعلوم دي).

**تفسیر:** یعنې الله تعالی ته ستاسې یوه یوه ذره نیکي هم معلومه ده، نو د یتیمانو او ښځو په حق کې هره ښېګڼه (ښه کار) چې وکړئ ! د هغې ثواب هرو مرو (خامخا) مومئ !.

وَإِنِ ٱمۡرَأَةٌ خَافَتۡ مِنۢ بَعۡلِهَا نُشُوزًا أَوۡ إِعۡرَاضࣰا فَلَا جُنَاحَ عَلَیۡهِمَاۤ أَن یُصۡلِحَا بَیۡنَهُمَا صُلۡحࣰاۚ وَٱلصُّلۡحُ خَیۡرࣱۗ

او که کومه ښځه ویرېده له مېړه خپله د سرکشي (د حقوقو په منع او د صحبت په ترک)، یا د مخ ګرځولو (له مجلسه او خبرو)؛ پس نشته ګناه پر دغو دواړو په دې کې چې صلح وکړي دوی پخپلو منځونو کې یو شان صلح، او صلح کول خیر (ډېر غوره) دي.

**تفسير:** يعنې که کومه ښځه د خپل مېړه زړه له خپله ځانه خپه ووینې، او د هغه د خوښۍ او متوجه کولو لامله له خپل مهر یا نفقې او نورو ځنې لږ څه ورپرېږدې، او هغه له خپله ځان خوښ کړې؛ نو په دې مصالحت کې د هیڅا په ذمه ګناه نشته، د زوجینو په منځ کې مصالحت او موافقه ډېره ښه خبره ده، هو ! بې له سببه د ښځو خپه کول او بې له رضا د دوی په مال کې تصرف کول ګناه ده.

ځینو مفسرینو د صلحې صورت داسې لیکلی دی: «ښځه مهر یا نفقه مېړه (خاوند) ته ورپرېږدې، کُلاً یا بعضاً، یا خپل وار خپلې بنې ته خوشې کړې، او مېړه (خاوند) دې طلاق نه ورکوي ! او تري څنګ (ډډه) دې هم نه کوي !، او خبرې اترې دې ورسره کوي».

وَأُحْضِرَتِ الْأَنفُسُ الشُّحَّ

او حاضر کړې شوی دی (اینبودل شوی دی) په زړونو کې حرص (او د زړونو په منځ کې بخیلي موجوده ده).

**تفسير:** يعنې د هر چا په زړه کې د خپل ځان نفع او د مال حرص او بخیلي شته، نو که ښځه نظر کوم مصلحت ته خپل مېړه (خاوند) ته کومه نفع ورسوي، نو نارینه ترې خوښېږي، «او که نارینه خپلې ښځې ته کومه نفع ورسوي؛ نو دا ښځه ترې خوشالیږي، لیکن د حرص، بخیلي، اعراض، او بې پروایی له کبله مېړه (خاوند) ته غاړه نه ږدي، او له خپلو حقوقو لږ څه هم نه ورته تېرېږي، او مېړه (خاوند) هم د ښځې ښه ساتلو او د دې د لږو حقوقو اداء کولو ته نه تیارېږي».

وَإِن تُحْسِنُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٢٨﴾

او که نیکي وکړئ تاسې ! (له خپلو ښځو سره) او پرهېز وکړئ تاسې (له نشوزه او خصومته) نو بېشکه چې الله دی په هغه شي چې کوئ یې تاسې (له محبته او خصومته) ښه خبردار (نو ستاسې د عمل سره به سمه جزا درکړي).

**تفسير:** يعنې که له ښځو سره ښه سلوک وکړئ ! او له بد سلوکۍ او جنګونو او جنجالونو ځانونه وژغورئ؛ نو الله تعالی ستاسې له ګردو خبرو ځنې خبردار دی، د نیکۍ ثواب به خامخا تاسې ته درکوي، ښکاره ده چې په دې صورت کې اعراض او خپګان نه پېښېږي، او د رضا کولو او له خپل حق ځنې د تېرېدلو ضرورت نه پاتې کیږي.

وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ

او له سره به طاقت رانه وړئ تاسې (ای د ډېرو ښځو مېړونو !) د دې چې عدل وکړئ (او برابروالی وساتئ په هر شي کې) په ما بین د ښځو خپلو کې اګر که ډېر حرص وکړئ تاسې (عدل ته)، نو مخ مه ګرځوئ تاسې (له یوې ښځې) په کامل مخ ګرځولو سره؛ چې پس پرېږدئ دا (ښځه) په شان د ځوړندې شوې؛ (چې نه یې طلاقوئ، او نه د مېړه توب معامله ورسره کوئ).

**تفسير:** يعنې که څو ښځې ستاسې په نکاح کې وي، - او دغه ستاسې له لاسه نه کیږي؛ چې د زړه مینه او په هر امر کې بیخي مساوات او برابري رعایت له هرې یوې سره وکړئ -؛ نو داسې ظلم او تېری هم مه کړئ ! چې بیخي یوه لورې ته وښوییږئ او میلان وکړئ، او هغه بله ښځه همغسې په منځ کې ځوړنده پرېږدئ، نه یې هوسا (خوشاله) او آرامه ساتئ، او نه یې بیخي جلا (جدا) کوئ چې له بل چا سره خپله نکاح وتړي.

وَإِنْ تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۱۲۹﴾

او که اصلاح وکړئ تاسې (له خپلو ښځو سره) او پرهېز وکړئ (له ظلمه) نو بېشکه چې الله دى ښه مغفرت کوونکى (د خطياتو) ډېر رحم کوونکى.

**تفسير:** يعنې که د اصلاح او د مصالحت معامله وکړئ، او حتى المقدور له ظلم، تعدي، او حق تلفى ځخه خپل ځانونه وژغورئ؛ نو الله تعالى ښنونکى دى.

وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ وَاسِعًا حَكِيمًا ﴿۱۳۰﴾

او که سره بېل شول دواړه (زوجين په طلاق سره) نو بې پروا به کاندي الله هر يو له دوى نه په خپله پراخه مهرباني، او دى الله پراخ (رحمت، فضل، او احسان د ده) تدبير والا (چې هر کار له حکمت او مصلحت سره سم کوي).

**تفسير:** يعنې که زوجين بېلوالى غوره کړي، او دطلاق وار ورسيږي، نو هيڅ حرج نشته، الله تعالى د هر يوه کار جوړوونکى دى، او د ګردو حاجاتو پوره کوونکى دى، په دې کې دې لوري ته اشاره ده، چې ښايي ښځه په راحت او هوسايي (آرام) کې وساتله شي !، او ايذاء او ربړ (تکليف) ورته ونه رسوئ ! او که داسې ښه ژوندون يې له لاسه پوره نه وي، نو بيا ښه ده چې طلاق ورکړي، والله أعلم.

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِن قَبْلِكُمْ وَإِيَّاكُمْ أَنِ اتَّقُوا اللَّهَ ۚ وَإِن تَكْفُرُوا فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ غَنِيًّا حَمِيدًا ﴿۱۳۱﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿۱۳۲﴾

او (خاص) الله لره دي هر هغه شيان چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه شيان چې په ځمکه کې دي (سره د اسمانو او ځمکې ملکاً، خلقاً، او عبيداً)، او خامخا په تحقيق حکم کړى دى مونږ هغو کسانو ته چې ورکړى شوى دى دوى ته کتاب پخوا له تاسې، او (هم خاص حکم کړى دى مونږ) تاسې ته د دې چې وويرېږئ ! له الله، او که تاسې کافران شئ؛ نو بېشکه (خاص) الله لره دي هر هغه شيان چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه شيان چې په ځمکه کې دي (سره د اسمانو او ځمکې ملکاً، خلقاً، او عبيداً)، او دى الله ښه غني (ډېر بې پروا له هر چا او هر شي)، ښه ستايلى شوى (په ډېرو ښو صفاتو سره). او (خاص) الله لره دي هر هغه شيان چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه شيان چې په ځمکه کې دي (سره د اسمانو او ځمکې ملکاً، خلقاً، او عبيداً)، او بس دى الله وکيل (ښه کار جوړوونکى).

**تفسير:** د دې دواړو آيتونو خلاصه دا ده چې: تاسې او له تاسې ځخه ګردو پخوانيو خلقو ته دا حکم اورول شوى دى، چې له الله تعالى ځخه وويرېږئ !، او د ده له احکامو ځنې نافرماني مه کوئ ! او ترې غاړه مه غړوئ !، نو که اوس څوک د الله جل جلاله حکم نه مني؛ نو الله جل جلاله د ګردو شيانو مالک دى، او د هيچا پروا نه لري، يعنې دى خپل ځان ته نقصان رسوي، او پاک الله ته هيڅ يو تاوان نشي رسولى، که د الله تعالى احکام ومنئ؛ نو په دې باور ولرئ ! چې الله جل وعلا شأنُه چې دګردو شيانو مالک دى، ستاسې ګرد کارونه درجوړوي.

درې ځلې يې وفرمايل: هر هغه شيان چې په ګردو اسمانونو او ځمکه کې دي؛ د الله تعالى دي:

له (۱) نه پراخي او وسعت مقصود دی، يعنې د هغه په دربار کې د هيڅ يو شي کمی نشته.

له (۲) نه د بې نيازۍ او بې پروايۍ بيان مقصود دی، يعنې که تاسې منکران يئ، الله (جل جلاله) د هيڅا پروا نه لري.

له (۳) نه د رحمت او د کار جوړولو اظهار دی، په دې شرط سره چې تاسې پرهېزګاران او متقيان اوسئ !.

إِنْ يَّشَأْ يُذْهِبْكُمْ أَيُّهَا النَّاسُ وَيَأْتِ بِآخَرِينَ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾

که اراده وفرمايي (الله د بيولو او مړه کولو ستاسې) نو بو به ځي(فنا به کړي) تاسې (په موت سره) ای خلقو ! او رابه ولي نور خلق (په پيدا کولو سره)، او دی الله پر دغه (اعدام او ايجاد هم) ښه قادر (او پوره قدرت لري).

تفسير: يعنې الله تعالی پر دې باندې هم قادر دی، چې تاسی ګرد سره فناء کړي، او د دنيا له مخې مو لرې کړي، او ستاسې په ځای نور مطيعان او حکم منونکي خلق پيدا کړي.

له دې ځنې هم د الله تعالی د بې پروايۍ او د استغناء اظهار ډېر ښه راښکاريږي، او غاړه غړوونکو ته هم پوره تهديد او تخويف وشو.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۭ

هر څوک چې وي چې وغواړي ثواب (بدل) د دې دنيا؛ نو دی په نزد د الله ثواب (بدل) د دنيا او (ثواب) د آخرت.

تفسير: يعنې که تاسې د الله تعالی د احکامو متابعت وکړئ؛ نو تاسې ته د دنيا او آخرت د دواړو ثوابونه او اجرونه درکول کيږي، نو بيا يواځې په دنيا پسې ګرځېدل او د الله تعالی د احکامو د نه منلو په اثر له آخرت (بلکه له دنيا) څخه هم ځان محروم او بې برخې ګرځول لويه ناداني ده.

وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾

او دی الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه ليدونکی.

تفسير: يعنې الله تعالی ستاسې ګرد کارونهويني، او ستاسې ګردې خبرې اوري، هر شی چې غواړوئ، که اراده وفرمايي؛ نو همغه به درکوي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) اوسئ تاسې تل محکم ولاړ ! په انصاف سره شاهدان (خاص) لپاره د الله، اګر که وي (شاهدي) پر نفسونو ستاسې (چې زيان مو وي په کې) يا (په) والدينو (مور او پلار ستاسې) يا (په) اقاربو (خپلوانو ستاسې).

تفسير: يعنې ښايي چې په رښتيا او د الله تعالی له حکم سره سمه شاهدي ورکړئ ! اګر که په دې حقه شاهدي کې ستاسې يا ستاسې د کوم عزيز او قريب خپلوان زيان هم وي، هر هغه خبره چې رښتيا وي، ښايي چې په ښکاره ډول سره اظهار کړل شي، او د دنيوي نفعې لپاره اخروي نقصان وانخلئ.

إِن يَكُنْ غَنِيًّا أَوْ فَقِيرًا فَاللَّهُ أَوْلَىٰ بِهِمَا ۖ فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوَىٰ أَن تَعْدِلُوا ۚ

كه وي دغه (مشهود عليه او مشهود له) غني (شتمن) يا فقير (محتاج) نو الله ډېر خير غوښتونكى دى پر دوى (له تاسې نه)، نو مه كوئ تاسې متابعت د هوا (د نفساني خواهشونو) چې انصاف وكړئ تاسې (او له حقه مه تېرېږئ ! يا چې عدول وكړئ له حقه).

تفسير: يعنې په رښتيا شاهدۍ كې د خپلې كومې نفساني غوښتنې متابعت ونه كړئ ! چې د شتمنو رعايت وكړئ، او پر محتاجو باندې ورحمېږئ، او حقه خبره پټه كړئ، هر هغه شى چې حق وي؛ همغه ووايئ، الله تعالى له تاسې څخه زيات د هغوى د خير او ښېګڼې اراده لري، او د دوى په مصالحو باندې ښه پوه او خبردار دى، او د ده په دربار كې د هيڅ شي كمى نشته.

وَإِن تَلْوُوا أَوْ تُعْرِضُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٣٥﴾

كه واړوئ تاسې (خپلې ژبې) يا څنګ وكړئ تاسې (له شاهدۍ نه) نو بېشكه الله دى پر هغه شي چې كوئ (يې) تاسې ښه خبردار (نو سم د عمل سره به سمه جزا دركړي).

تفسير: د ژبې اړول دا دي چې رښتيا خبره ووايئ، مګر خو په پېچلو او تاو كړيو الفاظو، چې د هغو له اورېدلو څخه اوريدونكي په شبهه كې لوېږي، يعنې صافه صافه او رښتيا خبره نه وايئ. او ځان ترې ژغورل (بچ كول) او په څنګ (ډډه) كېدل دا دي چې: پوره خبره ونه وايئ، بلكه هغه خبرې چې په كار راځي هغه پرېږدئ، نو په دې دواړو صورتونو كې يې اګر كه دروغ نه دي ويلي، مګر د حق د نه ښكاره كولو له امله ګناهګارېږي، او ښايي چې هرو مرو شاهدي پوره او په رښتيا الفاظو وركړه شي !، (يا دا چې د شهادت له اداء څخه مخ واړوئ، او پټ يې كړئ).

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا آمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَىٰ رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي أَنزَلَ مِن قَبْلُ ۚ وَمَن يَكْفُرْ بِاللَّهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿١٣٦﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (اى مؤمنانو !) ثابت او خالص كړئ تاسې ايمان خپل پر الله او رسول د ده (محمد) او په هغه كتاب (قرآن) چې ټوټه ټوټه يې نازل كړى دى پر رسول خپل (محمد) باندې، او پر هغه كتاب چې ټول يې يو ځل نازل كړى دى پخوا (له قرآن په نورو رسولانو)، او هر څوك چې كافر شي پر الله، او پر ملائكو (پرښتو) د دغه (الله) او پر كتابونو د دغه (الله) او پر رسولانو د دغه (الله) او پر ورځې آخرې (چې قيامت دى)؛ نو په تحقيق ګمراه شوي دي په ګمراهۍ لرې سره (له حقه).

تفسير: يعنې هر څوك چې ايمان راوړي نو ضرور دي چې د الله تعالى پر ګردو احكامو او ارشاداتو د زړه له كومې يقين ولري، كه د الله تعالى له احكامو او ارشاداتو څخه پر يوه حكم هم يقين ونه كړي؛ نو هغه مسلمان نه دى، او تش د ژبې وينا او د خولې اظهار هيڅ كوم اعتبار نه لري.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيلًا ﴿١٣٧﴾

بېشكه هغه كسان (يعنې يهودان) چې ايمان يې راوړى دى (په موسى) بيا كافران شوي دي (په عبادت د خُسي سره)، بيا يې ايمان راوړى دى (په توبه ايستلو سره)، بيا كافران شوي دي (په

انجیل او عیسی باندې) بیا زیات شوي له جهته د کفره (په محمد باندې) نه دی الله چې مغفرت وکړي دوی ته، او نه چې وښیي دوی ته سمه صافه لاره (څو چې دوی په خپل کفر کې دوام لري).

تفسیر: یعنې په ظاهر کې مسلمانان او په زړه کې مذبذب پاتې وو، او په آخر کې بې له یقین کولو مړه شول، نو دوی ته د نجات لاره نه موندله کیږي، دوی کافران دي، او ظاهري مسلماني یې هیڅ په کار نه ورځي، له دې نه منافقین مراد دي.

او ځینې وایي چې: دا آیت د یهودانو په باره کې نازل شوی دی، چې لومړی یې ایمان راوړ، بیا د خُسي په عبادت کولو سره کافران شول، بیا یې توبه وکړه او مؤمنان شول، بیا له عیسی علیه السلام څخه منکران او پرې کافران شول، وروسته له دې د محمد رسول الله (صلی الله علیه وسلم) له رسالته یې هم انکار وکړ، او په کفر کې یې لا پسې ترقي وکړه.

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمَا ﴿۱۳۸﴾ الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴿۱۳۹﴾

زیرې ورکړه (ای محمده !) منافقانو ته په دې چې بېشکه شته دوی ته عذاب دردناک. هغه کسان چې نیسي دوی کافران دوستان (خپل) بې له مؤمنانو، آیا لټوي دا (منافقان) له کافرانو څخه عزت، پس بېشکه (دنیوي او اخروي) عزت خاص الله لره دی ټول.

تفسیر: یعنې منافقان چې له مسلمانانو څنې جلا کیږي، او که کافرانو سره دوستي کوي، د هغوی لپاره سخت عذاب دی، د منافقانو دغه خیال چې «مونږ ته د کفارو د ناستې او ولاړې لامله دنیوي عزت رسیږي» بیخي غلط دی، ځکه چې ګرد عزتونه د الله تعالی له خوا دي، هر څوک یې چې اطاعت کوي؛ د ده په برخه عزت رسیږي، خلاصه یې داسې شوه چې داسې خلق به په دنیا او آخرت دواړو کې خوار او ذلیل اوسي.

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِى الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِىْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ فِىْ جَهَنَّمَ جَمِيْعَا ۙ ﴿۱۴۰﴾

او په تحقیق (پخوا) نازل کړی دی (الله) پر تاسې په کتاب (قرآن) کې دا حکم «هر کله چې واورېدل تاسې (په یوه مجلس کې) آیاتونه د الله چې کفر (او انکار) کولی شي په دې آیتونو، او مسخرې کولی شي په هغو پورې؛ نو مه کینئ تاسې له دوی سره (ای مؤمنانو !) تر هغه پورې چې مشغول شي دوی په خبره بله کې (که نه) په تحقیق تاسې (هم) په دې وخت کې د هغو په شان شئ (په ګناه کې)، بېشکه چې الله یو ځای کوونکی دی د منافقانو او د کافرانو په جهنم (دوزخ) کې د ټولو (په یو ځای کې).

تفسیر: یعنې ای مسلمانانو ! الله تعالی پخوا له دې نه په قرآن عظیم الشأن کې تاسې باندې داسې حکم نازل کړی دی: «په هر هغه مجلس کې چې د الله تعالی پر احکامو تمسخر او له هغو څخه انکار کیږي، هلته له سره مه کینئ ! که نه تاسې هم همغسې ګڼل کیږئ، هو ! که هغوی په نورو خبرو کې مشغول شي؛ نو په هغه وخت کې له هغوی سره د کیناستلو هیڅ ممانعت نشته»، د منافقانو په مجلسونو او مرکو کې د الله تعالی له احکامو او له آیتونو څخه انکار او

وربانـدې تمسخر کېـده، نو پـه دې مناسبت دا آيت نازل شـو، او دا چې يې وفرمايل: «حکم نازل شوی دی پر تاسې باندې؛ دې آيت ته اشاره ده: ﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ﴾ الآيه ـ چې پخوا له دې نه نازل شوی وو».

**فائده:** له دې نه معلومه شوه، هر هغه څوک چې په مجلس کې په خپل دين باندې طعن او عيب اوري، او بيا هلته کيني، او اوري يې، اګر که هغه پخپله څه ونه وايي؛ «منافق» دی.

﴿الَّذِينَ يَتَرَبَّصُونَ بِكُمْ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللَّهِ قَالُوا أَلَمْ نَكُن مَّعَكُمْ وَإِن كَانَ لِلْكَافِرِينَ نَصِيبٌ قَالُوا أَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُم مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾

هغه منافقان چې هميشه منتظر دي (حوادثو) ستاسې ته، نو که وو تاسې ته برئ له (لوري) د الله، نو ووايي دا (منافقان مسلمانانو ته) چې: آيا نه وو مونږ له تاسې سره؟ او که وه کافرانو ته برخه (د بري) نو وايي دا (منافقان کفارو ته) چې: آيا غالب شوي نه وو مونږ پر تاسې او (آيا) ومو نه ژغورلئ (بچ مو نه کړئ) تاسې له مؤمنانو څخې؟

**تفسير:** يعنې دا منافقان هغه کسان دي چې پر له پسې ستاسې د کمی په انتظار کې دي، بيا که برئ (فتح) ستاسې په برخه شوه؛ نو تاسو ته وايي: «آيا مونږ له تاسې سره نه وو؟ (بلکه وو)، د ولجې (غنيمت) په مال کې مونږ هم له خپلو ځانونو سره شريک کړئ !»، او که کافرانو ته په جنګ کې څه شی په لاس ورشي، يعنې کفار غالب شي؛ نو هغوی ته وايي: «آيا مونږ تاسې باندې غلبه نه وه کړې؟ يعنې پر تاسې باندې غالب او په دې قادر وو چې تاسې قتل کړو، خو مونږ له تاسې څخې لاس واخيست، نو آيا مونږ ستاسې حفاظت نه دی کړی؟ آيا مونږ تاسې د مسلمانانو له ضرره نه وی ژغورلي (بچ کړي)؟ نو په ولجه (غنيمت) کې مونږ ته هم برخه راکړئ !».

**فائده:** له دې څخې معلومه شوه، که څوک سره له دې چې په حقاني دين کې هم وي، او له ګمراهانو سره پټې خبرې او ځان ته جوړښت لري؛ نو دا وضعيت يې هم د «نفاق» خبره ده.

﴿فَاللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ ١٤١

نو الله به فيصله وکړي په مينځ ستاسې کې په ورځې د قيامت کې، او له سره به ونه ګرځوي الله لپاره د کافرانو پر مؤمنانو باندې هيڅ لاره (د حجت او د بري).

**تفسير:** يعنې الله تعالی ستاسې او د دوی په منځ کې حکم او فيصله کوي، چې تاسې جنت ته بيايي، او دوی په دوزخ کې اچوي، په دنيا کې هر څه چې د دوی له لاسه کيږي؛ هغه دې وکړي ! خو نتيجې به يې وګوري، مګر سره له هغه دوی د مؤمنانو هيڅ شی نه شي خرابولی، او نه يې له مينځه لرې کولی شي، چې همدغه (مسلمانانو ته ضررونه) د دوی د زړه ارزو او تمنا ده.

﴿إِنَّ الْمُنَافِقِينَ يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ﴾

ببشکه چې منافقان ټګي کوي (په اظهار د اسلام او اخفاء د کفر) له الله سره، او الله د دوی د ټګۍ په مقابل کې له دوی سره ټګي کوي.

**تفسير:** يعنې په زړه کې کافر او په ښکاره مسلمان دی، څو د دواړو خواوو له ضرر او ايذاء څخه محفوظ پاتې وي، او له دواړو خواوو ګټې او فائدې واخلي، حق سبحانه وتعالی د دوی د دې غولونې او ټګۍ دا سزا ورکړه، چې د هغوی ګرد شرارتونه او پټ خباثت يې خپل پاک نبي صلی الله عليه وسلم ته ښکاره کړ،

او دوی یې داسې ذلیل او خوار کړل؛ چې بېخي له کاره ووتل، او د هیڅ اعتبار وړ نشول، او ګرد چلونه او فریبونه یې مسلمانانو ته ښکاره شول، او هغه سزا چې دوی ته په آخرت کې وررسیږي، هغه یې هم راڅرګنده کړه، لکه چې په راتلونکو آیتونو کې یې ذکر راځي، خلاصه یې دا چې د دوی له دغې ټګۍ څنې هیڅ ونشول، او د الله تعالی له لوري دوی په داسې یوه مغالطه کې ولوېدل، چې دنیا او آخرت دواړه د دوی له لاسه لاړل.

وَإِذَا قَامُوٓا۟ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ قَامُوا۟ كُسَالَىٰ يُرَآءُونَ ٱلنَّاسَ وَلَا يَذْكُرُونَ ٱللَّهَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾

او هر کله چې پاڅیږي دغه (منافقان) لمانځه ته؛ نو پاڅیږي سست، ښیي دوی خلکو ته (ځان خپل چې مونږ هم مسلمانان یو)، او نه یادوي دوی الله مګر (ریایې یادول) لږ.

تفسیر: یعنې لمونځ چې نهایت ضرروي او خالص عبادت دی، او د هغه په اداء کولو کې هیڅ یو قسم ځاني او مالي ضرر او اندېښنه هم نشته؛ منافقان له هغه څخه هم ځانونه باسي، او که کله یې له مجبوریته کوي، هغه هم تش د ریا او د نورو د ښوولو او تېر ایستلو لپاره یې کوي، ځو نور د دوی له کفر څنې خبر نشي، او مسلمانان وګڼل شي، نو بیا له داسې خلقو څنې د څه خبرې توقع کېدی شي، او دی څرنګه مسلمانان کېدی شي؟.

مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَن يُضْلِلِ ٱللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُۥ سَبِيلًا ﴿١٤٣﴾

په دې حال کې چې دوی متحیران مترددان دي په مینځ د دغه (ایمان او کفر)، نه (بېخي) په طرف د دغو (مؤمنانو دي په باطن کې) او نه بېخي په طرف د هغو (کفارو) دي (په ظاهر کې)، او هر څوک چې ګمراه (یې) کړي الله؛ نو له سره به نه مومې ته ده ته لاره (د حق).

تفسیر: یعنې منافقان خو بېخي په تردد او حیرت کې دي، نه دوی په اسلام باندې اطمینان لري، او نه په کفر ډاډه دي، او په سخته پرېشانۍ کې مبتلا دي، کله یوه لوري ته تمایل کوي، او کله بل لوري ته خپل میلان ښکاره کوي، او الله تعالی چې د هر چا د ګمراهۍ او پرېشانۍ اراده وفرمایي؛ نو هغه به د نجات لاره چېرې ومومي؟.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا مُّبِينًا ﴿١٤٤﴾ إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴿١٤٥﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) مه نیسئ ! تاسې کافران دوستان (خپل) بې له مؤمنانو څنې، آیا اراده لرئ تاسې (ای مؤمنانو !) د دې چې پیدا کړئ الله لره پر تاسې برهان (حجت صریح الالزام) ښکاره. بېشکه منافقان دي په طبقه ډېره ښکته کې له اوره (د دوزخ)، او له سره به نه مومې ته دوی ته مددګار (له عذابه خلاصوونکی).

تفسیر: یعنې له مسلمانانو څنې جلا کېدل، او له کفارو سره دوستي او یو ځای کېدل، د نفاق دلیل دی، لکه چې منافقان یې کوي، نو تاسې لره ای مسلمانانو ! داسې کار بېخي نه ښایي !، که نه د پاک الله صریح الالزام، ښکاره برهان، او پوره حجت به په تاسې قائم شي، چې تاسې هم منافقان یئ، او د منافقانو لپاره د دوزخ ډېره ښکته طبقه مقرره ده، او هیڅ څوک له دوی سره مرسته او مددګاري نشي کولی؛ چې دوی له هغې طبقې څنې وکاږي، یا یې په عذاب کې څه تخفیف راولي، مسلمانانو لره ښایي چې له داسې خبرې څنې بېخي لرې وګرځي.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَاعْتَصَمُوا بِاللَّهِ وَأَخْلَصُوا دِينَهُمْ لِلَّهِ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٤٦﴾

مګر هغه کسان چې توبه وباسي (له نفاقه)، او اصلاح کړي (اعمال خپل) او منګولې خښې کړي په (دين د) الله، او خالص کړي دين خپل (له ريا او ښودني) خاص الله لره؛ نو دغه (تائبين مصلحين، معتصمين، مخلصين) به وي سره له مؤمنانو (په دارينو کې)، او ژر به ورکړي الله (ټولو) مؤمنانو ته (په دنيا او په عقبی کې) ثواب ډېر لوی.

تفسير: يعنې هغه منافق چې له خپله نفاقه توبه وباسئ او خپل اعمال ښه کړي، او د الله تعالی غوره دين ښه مضبوط او کلک ونيسي، او پر پاک الله توکل وکړي، او له ريا او له نورو خرابيو ځنې خپل دين پاک او صاف وساتي؛ نو هغه خالص مسلمان دی، او په دين او دنيا کې به له نورو مؤمنانو سره وي، مخصوصا ايمان لرونکو لره ډېر لوی ثواب رسيدونکی دی، او هغه منافقانو ته به هم له هغو حقيقي مؤمنانو سره ثواب رسېدونکی وي؛ چې له نفاقه يې په رښتيا توبه ايستلې وي.

مَا يَفْعَلُ اللَّهُ بِعَذَابِكُمْ إِنْ شَكَرْتُمْ وَآمَنْتُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ شَاكِرًا عَلِيمًا ﴿١٤٧﴾

څه کوي الله په عذاب ستاسې (او ولې به عذاب درکوي تاسې ته؟) که شکر وباسئ تاسې، (په دين دالله او په صدق توبه وباسئ) او ايمان ولرئ تاسې، او دی الله شکر قبلوونکی، ښه عالم (پر ګردو شيانو).

تفسير: يعنې الله تعالی د ښو کارونو قدر کوي، او د بندګانو پر ګردو کارونو او خبرو باندې ښه عالم دی، نو هر هغه څوک چې د الله جل جلاله حکم ته په امتنان او شکر ايستلو سره غاړه ږدي، او هغه باندې له زړه يقين لري؛ نو الله تعالی عادل او رحيم دی، او داسې خلق له سره نه په عذابوي، او د داسې کسانو تعلق او ارتباط له عذابه سره بيخي نه وي، بېشکه الله تعالی سر کښان او غاړه غړوونکي په خپل عذاب اخته کوي.

«اللهم إنا نشكرك ونؤمن بك فقنا العذاب، وارزقنا الثواب، وكان الله شاكرا عليما».

لَا يُحِبُّ اللَّهُ الْجَهْرَ بِالسُّوءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلَّا مَنْ ظُلِمَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ سَمِيعًا عَلِيمًا ﴿١٤٨﴾

نه خوښوي الله ښکاره ويل د بدې خبرې (لکه چې نه خوښوي پټ ويل د دې بدو هم) مګر (ښکاره ويل) له هغه چا چې ظلم پرې شوی وي، او دی الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (په پټو او ښکاره وو).

تفسير: يعنې که په چا کې کوم ديني يا دنيوي عيب وي، نو نه ښايي چې هغه مشهور کړ شي، الله تعالی د ټولو خبرې اوري، او پر ټولو کارونو باندې پوهيږي، او هر يوه ته سم له هغه سره جزا ورکوي، داسې بد ويلو ته «غيبت» ويل کيږي، هو ! مظلوم لره اجازه ده، چې د ظالم ظلم خلقو ته بيان کړي، همدارنګه په ځينو نورو صورتونو کې هم «غيبت» روا دی، او ښايي دا حکم يې دلته د دې لپاره فرمايلی وي؛ چې مسلمانانو ته نه دي لازم چې د کوم «منافق» نوم مشهور او په ښکاره ډول يې بدنام کړي، چې په دې تور ونه خوري، او لا سر کښه، بېباکه او بې پروا نشي، بلکه مبهم نصيحت دې وکړ شي، «منافق» به خپله وپوهيږي، يا دې ځانته په ګوښه (تنهايي) کې نصيحت ورته وکړي، په دې سره ممکن دی چې هدايت ومومي، او پند واخلي، لکه چې رسول اعظم صلی الله عليه وسلم هم داسې کول، او د هيچا نوم به يې نه مشهوراوه.

إِن تُبْدُوا خَيْرًا أَوْ تُخْفُوهُ أَوْ تَعْفُوا عَن سُوٓءٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيرًا ﴿١٤٩﴾

که ښکاره کړئ تاسې خیر (نیکي ـ طاعت) یا پټوئ دغه (خیر) یا عفوه کوئ له بدی (چې ظلم دی)؛ نو بېشکه الله (هم) دی ښه عفوه کوونکی (گناهگارانو ته سره له قوت او قدرته) ښه قادر (په عذاب د ظالم او ثواب د مظلوم او نورو).

تفسیر: په دې آیت کې مظلوم ته د معافولو ترغیب ورکول منظور دي، چې الله تعالی سره له قدرت او زبردستی د خطا کوونکو خطاگانې ورمعافوي؛ نو عاجز او لاس لاندې بنده ته په اولی طریقه سره ښایي چې د نورو قصور ور معاف کړي، خلاصه یې داده: مظلوم ته جائز دي چې له ظالم څخه خپل بدل واخلي ! مگر افضل خو دادی چې صبر وکړي، او ور څخې تېر شي !، په دغه آیت کې دې لوري ته اشاره ده، که د منافقانو اصلاح غواړئ نو د دوی پر ایذاء او ضرر رسولو صبر وکړئ ! او په پسته ژبه او په پټه سره دوی وپوهوئ !، له ښکاره طعن او لعن او بد ویلو څخه خپل ځانونه وساتئ، او په ښکاره ډول هغوی سره مخالفت مه کوئ !.

إِنَّ ٱلَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ وَيُرِيدُونَ أَن يُفَرِّقُوا بَيْنَ ٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ وَيَقُولُونَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَيُرِيدُونَ أَن يَتَّخِذُوا بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١٥٠﴾ أُولَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَٰفِرُونَ حَقًّا ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٥١﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران (منکران) کیږي پر الله، او پر رسولانو د الله، او اراده لري (غواړي) دوی چې تفریق (بیلتون) وکړي په منځ د الله، او رسولانو د الله کې، او وایي دوی چې: مونږ ایمان راوړو پر ځینو، او کافران (منکران) کیږو پر ځینو (نورو رسولانو)، او اراده لري (غواړي) دوی چې ونیسي په منځ د دې (کفر او اسلام کې) یوه لاره. دغه (تفریق کوونکي) هم دوی کافران دي (په کمال د کفر او) په حقه سره، او تیار کړی دی مونږ لپاره د کافرانو عذاب ډېر سپکوونکی (د دوزخ).

تفسیر: له دې ځایه د یهودانو ذکر دی، څرنگه چې په یهودانو کې نفاق ډېر وو، او د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې چې منافقان عموما یهودان وو، یا یې له یهودانو سره رابطه او محبت درلود (لرلو) او د یهودانو پر مشورو باندې یې کار کولو؛ نو ځکه یې په پاک قرآن کې زیاتره د دې دواړو ډلو ذکر یو ځای فرمایلی دی.

د دې آیت خلاصه دا ده: «هغه کسان چې له الله جل جلاله او د ده له رسولانو منکران دي، او غواړي چې د الله تعالی او د ده د رسولانو په مینځ کې فرق وکړي، یعنې پر الله باندې ایمان راوړي، او پر رسولانو یې ایمان را نه وړي، او ځینې رسولان یې ومني، او ځینې یې ونه مني، د هغوی مطلب دا دی چې د اسلام او کفر په مینځ کې یو نوی مذهب د خپلو ځانونو لپاره جوړ کړي، همدغه کسان اصلي او پاخه کافران دي، د دوی لپاره د خوارۍ او د ذلت عذاب تیار دی.

فائده: د الله تعالی منل هلته معتبر دي چې د خپلې زمانې د نبي علیه السلام تصدیق هم وکړي، او د هغه حکم هم ومني، بې د نبي علیه السلام له تصدیقه د الله تعالی منل بې فائدې دي، او څه اعتبار نه لري، بلکه د یوه نبي علیه السلام تکذیب د الله تعالی او د گردو انبیاوو علیهم السلام تکذیب گڼل کیږي، کله چې یهودانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم تکذیب وکړو؛ نو د الله تعالی او د گردو انبیاوو علیهم السلام په تکذیب کوونکو کې گڼل او ډېر سخت کافران وگڼل شول.

وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُولَٰئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۱۵۲﴾

او هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی پر الله او پر (ټولو) رسولانو د (الله)، او نه دی کړی دوی تفریق (بیلتون) په مينځ د هیڅ یوه کې له دوی نه (په نه منلو سره)، دغه (مؤمنان په ټولو مؤمن به شیانو)؛ ژر به ورکړي (الله) دوی ته اجرونه (ثوابونه) د دوی، او دی الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې په منځ د هيڅ یو له انبیاوو علیهم السلام کې يې جلا (جدا) والې ونه کړ، بلکه په الله جل جلاله او د ده پر ګردو (ټولو) رسولانو علیهم السلام باندې يې ایمان راوړ؛ نو الله تعالی په خپل فضل او مرحمت سره دوی ګردو ته لوی ثواب ورکوي، له دې ځنې هغه مسلمانان مراد دي، چې پر الله تعالی او پر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم او پر نورو ټولو رسولانو علیهم السلام او نورو ګردو مؤمن به شیانو باندې يې ایمان راوړی دی.

يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَن تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَقَدْ سَأَلُوا مُوسَىٰ أَكْبَرَ مِن ذَٰلِكَ فَقَالُوا أَرِنَا اللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ فَعَفَوْنَا عَن ذَٰلِكَ وَآتَيْنَا مُوسَىٰ سُلْطَانًا مُّبِينًا ﴿۱۵۳﴾

سوال کوي له تا نه (ای محمده !) اهل کتاب (یهودان) د دې چې نازل کړې ته پر دوی (لکه تورات یو لیکلی) کتاب له اسمانه، نو په تحقیق سوال کړی وو دوی (یعنې پلرونو د دغو یهودانو) له موسی ځخه ډېر لوی له دغه (سواله)، پس ویلي وو دوی (موسی ته) چې: وښیه مونږ ته الله ښکاره (مخامخ)، نو ونیول دوی لره صاعقه (تندر) په سبب د ظلم د دوی (چې د الله د لیدلو سوال وو په دنیا کې)، بیا ونیوه دوی خُسی (په الوهیت سره) پس له هغه چې راغلې دوی ته ښکاره معجزې (په توحید)، پس عفوه وکړه (تېر شو) مونږ له دې ګناه (د دوی په توبه کولو سره)، او ورکړی وو مونږ موسی ته غلبه صریحه (برهان ښکاره).

تفسیر: د یهودانو ځو مشران د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شول، او ویې ویل: «که ته په رښتیا سره رسول يې؛ نو یو لیکلی شوی کتاب یو ځلې له اسمانه راوړه ! لکه چې موسی علیه السلام تورات راوړی وو»، نو پر دغې خبرې دا آیت نازل شو، او د دې رکوع ټول الزامات د دوی په ځواب کې ذکر کیږي، او وروسته له هغه تحقیقي ځواب ورکوي.

د آیت مطلب دا دی: ای محمده ! (صلی الله علیه وسلم): یهودان له تا ځنې عناداً د هسې کتاب مطالبه کوي، د دوی داسې بېباکي او سرکښي د تعجب خبره نه ده، د دوی پلرونو له دې ځنې هم لویه او سخته غوښتنه له خپل نبي موسی علیه السلام ځنې کړې وه؛ چې مونږ ته الله تعالی په ښکاره ډول سره راوښیه !، که نه مونږ ستا خبره نه منو، لکه چې په اول جزء د البقره سورت په (۵۵) آیت (۶) رکوع کې تېر شو، نو ځکه پر داسې ویونکو باندې ټکه ولوېده، او ګرد سره مړه شول، بیا الله تعالی د موسی «علیه السلام» په دعا سره دوی ژوندي کړل، د دومره عظیم الشأنو معجزو له لیدلو سره بیا د خُسي په عبادت کې مشغول شول، بیا الله تعالی دوی وبخښل، دا واقعه د البقره په سورت کې لږ څه په تفصیل سره ذکر شوې ده.

وَرَفَعۡنَا فَوۡقَهُمُ ٱلطُّورَ بِمِيثَٰقِهِمۡ

او پورته کړی وو مونږ برسېره پر دوی (غر د) طور لپاره د (قبول د کلکې) وعدې د دوی (چې د موسوي شريعت په منلو سره يې کړې وه).

تفسير: يعنې هر کله چې يهودانو وويل: چې د «تورات» حکم سخت دی، مونږ يې نه منو، نو دلته د «طور» غر له ځمکې څخه ورپورته او د دوی پر سرونو باند ځوړند شو (چې له خپله عهده سره سم) د «تورات» احکام ومني، او مضبوط او کلك يې ونيسي، که نه دا غر ستاسې په سر لوېږي.

وَقُلۡنَا لَهُمُ ٱدۡخُلُواْ ٱلۡبَابَ سُجَّدٗا

او ويلي وو مونږ دوی ته چې ننوځئ ! په وره (د ايليا د ښار) سجده کوونکي.

تفسير: په يهودانو باندې حکم وشو، چې په سجده کولو سره ښار ته ننوځي، او د ننوتلو په وخت کې مو سرونه راښکته کړئ !، دوی د سجدې کولو پر ځای په خپلو کوناټيو وښورېدل، او وښويېدل.

وَقُلۡنَا لَهُمۡ لَا تَعۡدُواْ فِي ٱلسَّبۡتِ وَأَخَذۡنَا مِنۡهُم مِّيثَٰقًا غَلِيظٗا ﴿١٥٤﴾

او ويلي وو مونږ دوی ته چې مه تېرېږئ له (حده) په (ورځې د) شنبې کې (د ماهيانو په ښکار سره)، او اخيستې وه مونږ له دوی څخه وعده محکمه (مضبوط قول په دغه خبره).

تفسير: په يهودانو باندې حکم شوی وو، چې د شنبې (خالي) په ورځ کې د ماهي (کب) ښکار مه کوئ ! او په دې ورځ کې له ګردو ورځو ځنې ډېر کبان په اوبو کې دوی ته په نظر ورتلل، نو يهودانو داسې چل او حيله جوړه کړه، چې د سيند په غاړو کې يې حوضونه جوړ کړل، او د شنبې په ورځو کې به يې کبان په هغو حوضونو کې ننه ايستل، او ساتل، او په نورو ورځو کې به يې ښکار کول، د دې فرېب او عهد ماتولو لامله الله تعالی له دوی ځنې بيزوګان جوړ کړل، چې په ځناورانو کې ډېره خسيسه او مکاره طبقه ده.

فَبِمَا نَقۡضِهِم مِّيثَٰقَهُمۡ وَكُفۡرِهِم بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ وَقَتۡلِهِمُ ٱلۡأَنۢبِيَآءَ بِغَيۡرِ حَقّٖ وَقَوۡلِهِمۡ قُلُوبُنَا غُلۡفُۢۚ بَلۡ طَبَعَ ٱللَّهُ عَلَيۡهَا بِكُفۡرِهِمۡ فَلَا يُؤۡمِنُونَ إِلَّا قَلِيلٗا ﴿١٥٥﴾

پس (په سزا ورسولی شو دوی) په سبب د ماتولو د دوی د کلك عهد خپل، او په سبب د کفر د دوی په آيتونو د الله باندې، او په سبب دوژلو د دوی انبياوو لره په ناحقه (په خپلې عقيدې سره هم)، او په سبب دويلو د دوی (دا خبره نبي ته د تمسخر په ډول) چې زړونه مو په پردو کې پټ دي (ستا وينا پرې اثر نه کوي، نو الله د دغو يهودانو په رد کې فرمايي چې: داسې نه ده لکه چې تاسې يې وايئ) بلکه مهر (د غفلت) وهلی دی الله په زړونو د دوی په سبب د کفر د دوی، پس ايمان نه راوړي دوی مګر لږ (د دوی نه).

تفسير: يعنې يهودانو هغه عهد مات کړ، نو الله تعالی په دوی باندې په دې عهد ماتولو او د نورو آيتونو په انکار، او د انبياوو عليهم السلام په نا حقه وژلو او د دوی په دې وينا باندې چې ځمونږ په زړونو باندې پردې او پوښونه دي؛ خورا سخت سخت عذابونه نازل کړل.

کله چې ځمونږ رسول صلی الله علیه وسلم یهودانو ته دحق دین دمنلو دعوت ورکولو نو، دوی به ویل چې: «ځمونږ زړونه په پردو کې دي، او ستا خبرې هلته نه رسیږي»، الله تعالی فرمايي چې: خبره داسې نه ده، بلکه د دوی د کفر او انکار په سبب د دوی پر زړو باندې الله جل جلاله مهر لګولی دی، چې د دغه مهر له امله ایمان د دوی په برخه نشي کېدی، مګر لږ څه کسان له دې نه مستثنی دي، لکه عبد الله بن سلام او د هغه نور ملګري (رضي الله تعالی عنهم).

وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ۝ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللَّهِ

او په سبب د کفر د دوی (مکررا) او (په سبب د) ویلو د دوی پر مریمې دروغ غټ (د زنا). او (په سبب د) ویلو د دوی (داسې چې): بېشکه وژلی دی مونږ مسیح عیسی ځوی د مریمې رسول د الله (په ګومان خپل).

**تفسیر:** او له دې جهته چې د عیسی علیه السلام څخه منکران شول، او بل یې کفر ځانونو ته غوره کړ، او پر بي بي مریمې رضي الله تعالی عنها یې لوی تهمت (تور) وکړ، او د دوی پر دې خبرې باندې چې په افتخار سره به یې ویل: «مونږ وژلی دی عیسی ځوی د مریمې چې د ده له اظهار سره سم د الله تعالی رسول وو»، نو د دې ګردو جهتونو له امله پر یهودانو باندې عذابونه او مصیبتونه نازل شولو، (که لفظ د «رسول الله» د یهودانو وینا وي نو استهزاء ده، او که د الله جل جلاله وي؛ نو استیناف یعنې ځانته جمله ده منصوب بالمدح ده، یعنې مدح کوم د رسول الله، نو فرمايي: الله په تکذیب د یهودانو کې).

وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَٰكِن شُبِّهَ لَهُمْ ۚ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ ۚ مَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ۝ بَل رَّفَعَهُ اللَّهُ إِلَيْهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ۝

حال دا چې نه وو وژلی دوی (عیسی واقعاً) او نه پر دار کړی وو دوی هغه (یقینا)، ولیکن مشتبه کړی شو (دغه وژلی شوی په دار وهلی شوی په عیسی سره) دوی ته، او بېشکه هغه کسان چې اختلاف کړی دی دوی په (حق د) عیسی کې خامخا په شک کې دي په (شان) د ده کې، نشته دوی ته په (شان) د ده کې هیڅ علم مګر تش متابعت د ګومان (خپل)، او نه وو وژلی دوی عیسی (په وژلو یقیني سره). بلکه پورته کړی وو دی الله طرف خپل ته، او دی الله ښه قوي غالب (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت کوي).

**تفسیر:** الله تعالی د دوی د دې وینا تکذیب کوي، او فرمايي چې: دغو یهودیانو په واقع کې عیسی علیه السلام نه دی وژلی، او نه یې په دار کړی وو، هغه مختلفې خبرې چې یهودان یې په دې باره کې کوي؛ له خپله فکره او اټکله یې وايي، او د الله تعالی له لوري په شبهه کې اچول شوي دي، او له دوی څخه هیڅوك په اصلي خبرې نه دي خبر، رښتیا خبره دا ده چې الله تعالی عیسی علیه السلام آسمان ته وخېژاوه، او الله تعالی پر ګردو شیانو باندې قادر او په هر کار کې یې یو حکمت دی.

خبره دا ده کله چې یهودانو د عیسی علیه السلام وژلو ته عزم او قصد وکړ، نو لومړی یو سړی د عیسی علیه السلام کور ته ننوت، کله چې الله تعالی عیسی علیه السلام آسمان ته وخېژاوه، نو پاك الله د دې سړي شکل لکه د عیسی علیه السلام غوندې واړاوه، او ورسره مشابه یې کړ، څرنګه چې نور یهودان هغه پسې د عیسی علیه السلام کور ته ننوتل، هغه سړی یې چې نوم یې طیطاؤش وو؛ مسیح وګاڼه، او ویې واژه، وروسته له هغه دوی ته داسې یو خیال پیدا شو، چې «د دې مصلوب مخ خو د مسیح له مخ سره ډېر مشابه دی، او نور بدن یې ځمونږ د ملګري په شان راښکاري»، چا ویل: «که

دا مقتول مسیح وي؛ نو څمونږ سړی «طیطاؤش» چېرې لاړ؟ او که دا څمونږ سړی دی؛ نو مسیح چېرې دی؟»، تش په اټکل او ګمان هر چا هر څه ویل، او اصلي خبره له دوی څخه هیڅ ته ښکاره نه وه، رښتیا خو همدا ده چې په یقین سره عیسی علیه السلام دوی له سره وژلی نه دی، بلکه الله آسمان ته پورته کړی دی، او یهودان یې په شبهه کې اچولي دي.

وَإِن مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ ۖ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ﴿١٥٩﴾

او نشته هیڅوک له اهل کتابه مګر قسم دی خامخا چې ایمان به راوړي دوی خامخا (په وخت د نزعي خپلې یا په وخت د نزول د عیسی) پر دغه (عیسی) پخوا له مرګه د ده څخه، او په ورځ د قیامت به وي (عیسی) پر دوی باندې شاهد (چې یهودانو ونه منلم، او نصرانیانو «ابن الله» وبللم).

تفسیر: عیسی علیه السلام پر آسمان کې ژوندی موجود دی، کله چې «دجال» پیدا شي؛ نو هله به عیسی علیه السلام بیا دغې ځمکې ته تشریف راوړي، او «دجال» به وژني، او یهودان او نصرانیان به په ده باندې صحیح ایمان راوړي، چې بېشکه عیسی ژوندی دی، مړ شوی نه دی، او د قیامت په ورځ کې به عیسی علیه السلام د دوی دغه ګرد اعمال او حالات اظهاروي، «چې یهودانو څما تکذیب او مخالفت کاوه، او نصرانیانو ما ته د الله جل جلاله څوی ویل».

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا ﴿١٦٠﴾ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ ۚ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٦١﴾

نو په سبب د ظلم د هغو کسانو چې یهودان دي؛ حرام کړل مونږ پر دوی باندې طیبات (هغه ډېر پاک شیان) چې حلال کړی شوي وو دوی ته، او (په سبب د) اړولو (منع کولو) د دوی له لارې د الله څخه ډېر (خلق). او (په سبب د) اخیستلو د دوی سود (له خلقو نه) حال دا چې په تحقیق منع کړی شوي وو دوی (په تورات کې) له دغه (سوده)، او (په سبب د) د خوړلو د دوی مالونه د خلقو په نا حقه سره (چې رشوت او نور ناروا شیان دي)، او تیا ر کړی دی مونږ لپاره د کافرانو له دوی څخه عذاب ډېر دردناک.

تفسیر: د موسی علیه السلام له زماني راهیسې اهل کتاب پرله پسې په ډېرو سرغړولو، عهد ماتولو، او د انبیاوو علیهم السلام په ایذاء او ضرر رسولو کې مشغول وو، نو ای محمده صلی الله علیه وسلم ! «اوس که دوی د عناد له مخې له تا څخه د (تورات) غوندې یو کتاب دفعتاً یو ځلې طلب کړي، او په قرآن عظیم الشأن باندې (چې له ګردو کتابونو څخه افضل دی) کفایت ونه کړي؛ نو له دې متعصبو او نالایقو څخه هیڅ لرې او مستبعد نه ده، د دوی له هسې نالائقو حرکاتو څخه تعجب مه کوه ! او مه حیرانېږه ! د دوی ګرد پخواني او وروستني وړوکي او لوی حرکات مونږ ته ښه معلوم دي، مونږ د دوی لپاره په دنیا کې خورا (ډېر) سخت شریعت معین کړی، او په آخرت کې مو هم ډېر سخت عذاب ورته مقرر او تیار کړی دی.

لَّٰكِنِ الرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُونَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ۚ وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَاةَ ۚ وَالْمُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَالْمُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أُولَٰئِكَ سَنُؤْتِيهِمْ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿١٦٢﴾

لیکن هغه (کسان) چې پاخه دي په علم کې له دوی څخه او ایمان لرونکي دي؛ ایمان لري په هغه (کتاب) چې نازل کړی شوی دی تاته، او (ایمان لري) پر هغو (کتابونو) چې نازل کړی شوي

دي پخوا له تا څخه، او (ايمان راوړي پر ټولو انبياوو) سم قائم کوونکو د لمانځه، او هغه کسان چې ورکوونکي دي زکات لره، (يا) او (صفت کوو د) سم قائم کوونکو د لمانځه، او هغه کسان چې ورکوونکي دي زکات لره، او ايمان راوړونکي په الله او په ورځې آخرې (چې قيامت دی)، دغه (کسان چې د صحيح ايمان او صالح عمل لرونکي دي) ژر به ورکړو مونږ دوی ته ثواب ډېر لوی (جنت، رضا، او لقا).

**تفسير:** يعني د بني اسرائيلو هغو کسانو چې مضبوط علم يې درلود (لرلو)، لکه عبد الله بن سلام او د هغه ملګري رضي الله تعالى عنهم، او هغه خلق چې د ايمان خاوندان دي، دوی قرآن، تورات، انجيل او نور ګرد مني، د لمانځه د سم اداء کوونکي له مدح او صفت او ښه حال څخه ښه پوښتنې کوې !، او زکات ورکوونکي او ايمان لرونکي په الله او په قيامت چې دي؛ مونږ دغو ستايل شويو کسانو ته خورا (ډېر) لوی ثواب او اجر ورکوو، پرته له لومړني فريق چې د هغوی لپاره خورا سخت عذاب موجود دی.

(پاس په تحت اللفظ کې د ﴿وَالْمُقِيمِينَ الصَّلَوٰةَ﴾ دوه ترجمې ليکلې شوي دي:

(۱): چې «المقيمين» په ﴿بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ﴾ عطف، او ترې انبياء مراد شي، يعني «يؤمنون بالکتاب وبالأنبياء المقيمين الصلاة».

(۲): چې «يؤمنون» خبر شي د «الراسخون» چې مبتدأ دی، او «المقيمين» په مدح سره منصوب شي، چې د هغه ترکيب تقرير اوس تېر شو.

﴿إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ﴾

بېشکه چې مونږ وحي مو کړېده تاته (ای محمده !)

**تفسير:** اهل کتابو او د مکې معظمې مشرکانو او نورو کفارو د قرآن مجيد په حقانيت او صداقت کې راز راز شبهې پيدا کولې، وګورئ ! چې دلته يې داسې وويل: «لکه چې تورات يو ځای او يو ځلې آسمانه رانازل شو، ښايي هم هغسې ته هم يو کتاب له آسمانه راوړې، بيا تا رښتينی نبي ګڼو، » نو الله تعالى آيتونه نازل کړل، او حقيقت يې راښکاره کړ، او د وحي عظمت يې راڅرګند کړ، او د کفارو د ګردو شبهاتو ترديد يې وفرمايه، او د الله تعالى د وحي متابعت يې په تعميم، او د قرآن مجيد اطاعت يې په تخصيص سره بيان وفرمايه، او دا يې راوښوده، چې د الله جل جلاله حکم منل پر ګردو باندې فرض دی، او د هيچا هيڅ يو عذر په دې کې نه منل کيږي، هر څوک چې د ده په تسليم کې تردد يا تأمل يا انکار کوي؛ هغه ګمراه او بې دين دی، اوس له دې ځايه تحقيقي ځواب ورکول کيږي، دغه ده چې فرمايي:

﴿كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ بَعْدِهِۦ﴾

لکه چې وحي کړې وه مونږ نوح ته، او (نورو) انبياوو ته پس له ده (لکه هود، صالح، لوط، شعيب او نور).

**تفسير:** وحي خاص د الله تعالى حکم او د ده هغه پيغام دی، چې په انبياوو عليهم السلام باندې نازليږي، او همغسې چې پر پخوانيو انبياوو باندې د الله جل جلاله وحي نازله شوې ده؛ همغسې پر محمد صلى الله عليه وسلم باندې هم الله تعالى خپله وحي نازله کړېده، نو هر هغه چا چې هغه پخوانۍ وحي منلې ده؛ ښايي چې دا هم هرومرو ومني، او هر هغه چې له هغې څخه انکار کوي؛ ګواکې له ګردو څخه انکار کوي.

د نوح علیه السلام له زماني پخوا د الله جل جلاله او د انبیاوو علیهم السلام د حکم پر مخالفت باندې عذاب نه نازلېده، بلکه دوی به معذور ګڼل کېدل، او د تعطیل او تأخیر رعایت به پکې کېده، او ډېر زيات کوښښ به د دوی په پوهولو صرفېده، د نوح علیه السلام په زمانه کې کله چې مذهبي تعلیم ښه ظاهر شو، او خلقو ته د الله تعالی د احکامو په متابعت کې هيڅ یوه خفاء پاتې نه شوه؛ نو دلته پر غاړه غړوونکو باندې عذاب نازل شو، اول د نوح علیه السلام په زمانه کې طوفان نازل شو، وروسته له هغه د هود علیه السلام او صالح علیه السلام او شعیب علیه السلام په زمانو کې کافرانو باندې نور راز راز عذابونه نازل شول، نو د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د وحي تشبیه څخه د هغو پخوانیو انبیاوو له وحیو سره اهل کتابو او د مکې معظمې مشرکانو ته پوره تنبیه ور کړل شوه، او دوی ته دا خبره لا څرګنده کړې شوه، هر څوک چې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم وحی یعنې قرآن عظیم الشأن نه مني، نو هغه هم د لوی عذاب وړ او مستحق ګرځي.

وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَٰرُونَ وَسُلَيْمَٰنَ ۚ وَءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ زَبُورًا ﴿١٦٣﴾ وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنَٰهُمْ عَلَيْكَ مِن قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۚ وَكَلَّمَ ٱللَّهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا ﴿١٦٤﴾

او (لکه چې) وحي کړې وه مونږ ابراهیم ته، او اسماعیل ته، او اسحق ته، او یعقوب ته، او اولادې (د یعقوب) ته، او عیسی ته، او ایوب ته، او یونس ته، او هارون ته، او سلیمان ته، او ور کړی وو مونږ داود ته زبور. (لېږلي وو مونږ نور داسې) رسولان چې په تحقیق سره قصه کړې ده مونږ د دوی پر تا (ای محمده !) پخوا له دې نه، او (لېږلي وو مونږ نور داسې) رسولان چې نه مو دي کړي قیصې د هغوی پر تا (ای محمده !)، او خبرې کړي دي الله له موسی سره په خبرو کولو سره.

تفسیر: له نوح علیه السلام څخه وروسته انبیاء علیهم السلام یې په اجمال، او هغه انبیاء علیهم السلام یې چې په دوی کې مشهور او جلیل القدر او اولوا العزم دي؛ په تخصیص او تفصیل سره ذکر کړل، چې له دی څنې دا ښه معلومه شوه، هغه وحي چې پر محمد صلی الله علیه وسلم باندې نازله شوې ده، د هغې حقانیت او د هغې منل همداسې ضروري دي؛ لکه چې د نورو اولوا العزمو او مشاهیرو انبیاوو علیهم السلام وحي منل ضروري وو.

او دا هم راښکاره شوه، چې پر نورو انبیاوو باندې چې وحي راتلله: کله به دوی ته پرښتو پیغام راوړ، او کله به هغوی ته لیکلی کتاب وررسېد، کله به د ملائکو له وسیلې پرته په خپله الله تعالی خپل رسول سره خبرې کولې، مګر په دې ګردو صورتونو کې څرنګه چې د الله تعالی حکم دی او د بل چا حکم نه دی؛ نو پر بندګانو باندې د هغه اطاعت یو شان فرض دی، اعم له دې چې تر بندګانو پورې د هغه د رسېدلو طریقه تحریري وي، که تقریري وي، او که پیغام وي، نو اوس د یهودانو دا وینا: «که تاسې د تورات غوندې یو کتاب یو ځلې له آسمانه په مونږ نازل کړئ؛ نو مونږ به تا رښتینی ګڼو، که نه نو دا ډېره د ناپوهی، بې ایمانی، او حماقت خبره ده» صریح کفر او ښکاره حماقت دی.

رُّسُلًا مُّبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى ٱللَّهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ ٱلرُّسُلِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ﴿١٦٥﴾

(او لېږلي مو دي) رسولان چې زیري کوونکي دي (مؤمنانو ته په جنت) او ویروونکي دي (د کفارو په جحیم)، لپاره د دې چې پاتې نشي خلقو ته پر الله باندې هيڅ حجت (دلیل، عذر، بهانه)

وروسته له (لېږلو) د رسولانو، او دی الله ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

**تفسير:** الله تعالی پرله پسې خپل انبياء عليهم السلام رالېږلي دي، چې مؤمنانو ته زيری ورکړي، او کافران وويروي، تر څو د قيامت په ورځ کې خلقو ته د دې عذر او بهانې ځای پاتې نشي؛ چې ووائي: مونږ ته ستا رضا او غير رضا معلومه نه وه، ګنې خامخا به مو په هغې باندې ټګ کړی وو، نو ځکه الله تعالی خپلو رسولانو ته معجزې ورکړې، او ور وېې لېږلي، او رسولانو هم د حق لارې خلقو ته وروښودلې، نو وروسته له دې نه د حق دين په منلو کې د هيچا عذر او پلمه (بهانه) نه اورېدل کيږي.

لَٰكِنِ اللَّهُ يَشْهَدُ بِمَا أَنزَلَ إِلَيْكَ ۖ أَنزَلَهُ بِعِلْمِهِ ۖ وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا ﴿١٦٦﴾

ليکن الله شاهدي لولي (اظهار، اقرار کوي) په هغه شي چې نازل کړی يې دی تاته (ای محمده !)، چې نازل کړی يې دی دا (معجزه قرآن پر تا) په علم خپل سره، او ملائکې هم شاهدي لولي (په نبوت ستا)، او بس دی الله حق ظاهر کوونکی، (نو د دوی شهادت ته حاجت نشته).

**تفسير:** يعنې وحي به په هر رسول باندې نازلېده، دا کومه نوې خبره نه ده، او ګردو ته معلومه ده، ليکن په دې قرآن کې الله تعالی خپل خاص علم رالېږلی دی، او الله تعالی به دا حق ظاهروي، لکه پوهان چې پرې پوهيږي، هغه علوم او حقائق چې له دې قرآن عظيم څخه حاصل شوي دي، او پرله پسې حاصليږي، هغه له نورو کتابونو ځنې له سره په لاس نه دي راغلي، او هومره هدايت چې خلقو ته د محمد صلی الله عليه وسلم له رسالته رسېدلی دی، د بل چا له رسالته نه دی رسېدلی، ځکه چې د ده نبوت عام دي ټولو خلکو، انسانانو او پيريانو ته.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَصَدُّوا عَن سَبِيلِ اللَّهِ قَدْ ضَلُّوا ضَلَالًا بَعِيدًا ﴿١٦٧﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا
وَظَلَمُوا لَمْ يَكُنِ اللَّهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيقًا ﴿١٦٨﴾ إِلَّا طَرِيقَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۚ وَكَانَ
ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿١٦٩﴾

ببشکه هغه کسان چې کافران شوي دي (د محمد له نبوت څخه)، او منعه کړي يې دي (خلق) له لارې د الله (اسلام) څخه؛ په تحقيق سره ګمراه شوي دي په ګمراهی ډېرې لرې سره (د حق له لارې نه). ببشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، او ظلم يې کړی دی (په پټولو د نعت د محمد يا په منعه د مؤمنانو له ايمانه) نه دی الله چې مغفرت وکړي دوی ته، او نه چې وښيي دوی ته سمه صافه لاره (څو چې دوی کافران دي) مګر (وبه ښيي دوی ته) لاره د دوزخ چې همېشه به وي دوی په هغه کې تل تر تله (بې انتها بلا انقطاع)، او دی دغه (ادخال او خلود في النار) پر الله باندې ډېر آسان.

**تفسير:** د قرآن مجيد او د محمد صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلم له تصديق او توثيق څخه وروسته فرمايي: «هغه کسان چې ستا له رسالت څخه منکران شول، او ستا هغه اوصاف او حالات چې په «تورات» کې موجود وو، هغه يې ګرد پټ کړل، او خلقو ته يې د هغو په ځای نور مهمل شيان ورخرګند کړل، او نور يې هم له حقاني دين څخه واړول؛ نو داسې کسان له سره نه د هدايت وړ او نه د مغفرت مستحق دي»، له دې نه دا خبره ښه ښکاره شوه، چې هدايت يواځې د محمد صلی الله عليه وسلم په متابعت کې منحصر دی، او ګمراهي د محمدي شريعت د مخالفت نوم دی، چې په دې سره د يهودانو پوره سرزنښ او ترټنه وشوه، او د دوی د خيالاتو غلطول لا ښه واضح شول.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلرَّسُولُ بِٱلْحَقِّ مِن رَّبِّكُمْ فَـَٔامِنُوا۟ خَيْرًا لَّكُمْ ۚ وَإِن تَكْفُرُوا۟ فَإِنَّ لِلَّهِ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۷۰﴾

اى خلقو ! په تحقيق راغلى دى تاسي ته رسول (محمد) په حق (قرآن يا اسلام) سره له (طرفه د) ربه ستاسي، نو ايمان راوړئ (او قصد وكړئ ! دهغه شي چې) خير دى تاسې ته، او كه كافران شوي يئ تاسې پس بېشكه خاص الله لره دي هغه شيان چې په آسمانونو كې دي، او (هغه شيان چې په) ځمكه كې دي (سره له آسمانونو او ځمكې ملكاً، خلقاً اوعَبيداً)، او دى الله ښه عالم (په ټولو احوالو) ډېر حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي).

تفسير: ستاسې او ستاسې د كتاب تصديق، او ستاسې د مخالفينو يعنې د اهل كتاب تغليظ او تضليل يې بيان كړ، اوس ګردو خلقو ته ندا كولى شي چې: «اى خلقو ! زما صادق رسول له رښتيني كتاب او حق دين سره تاسې ته درغلى دى، ستاسې خير په همدې كې دى، چې د هغه ګردې خبرې ومنئ ! او كه يې ونه منئ؛ نو ستاسې دغه كفر الله جل جلاله ته هيڅ ضرر نشي رسولى، ځكه چې خاص الله جل جلاله لره هغه شيان دي، چې په اسمانونو او ځمكو كې دي، او الله جل جلاله ستاسې په ګردو احوالو او افعالو خبردار دى، ستاسې د ټولو اعمالو پوره حساب او كتاب كوي، او بدل يې دركوي.

فائده: له دې ارشاداتو ځنې واضحه معلومه شوه، د هغو وحيو منل فرض دي؛ چې پر انبياوو عليهم السلام باندې نازلې شوي دي، او له هغو څخه انكار كول كفر دى.

يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ لَا تَغْلُوا۟ فِى دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا۟ عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلْحَقَّ ۚ إِنَّمَا ٱلْمَسِيحُ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ رَسُولُ ٱللَّهِ وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلْقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِّنْهُ ۖ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ ۖ وَلَا تَقُولُوا۟ ثَلَٰثَةٌ ۚ ٱنتَهُوا۟ خَيْرًا لَّكُمْ ۚ إِنَّمَا ٱللَّهُ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۖ سُبْحَٰنَهُۥٓ أَن يَكُونَ لَهُۥ وَلَدٌ ۘ

اى اهل كتابو ! مه كوئ ! تاسې مبالغه (تجاوز له حدودو) په دين ستاسې كې او مه وايئ تاسې پر الله مګر (ويل) حق (رښتيا)، بېشكه همدا خبره ده بله نه ده چې مسيح عيسى ځوى د مريمې رسول د الله دى، او (داسې) كلمه د ده ده، (يعني پيدا شوى دى په كلمې د «كن» سره) چې لېږلې يې وه دغه (كلمه د هغه مور) مريمې ته، او روح دى له جانبه د الله، نو ايمان راوړئ په الله او په رسولانو د ده (الله) !، او مه وايئ تاسې (داسې چې معبودان) درې دي، منع شئ (له دې وينا، اختيار كړئ توحيد چې) خير دى تاسې تـه، بېشكه همدا خبره ده چې الله حق معبود يو دى (بې شريكه بې عيبه)، پاكي ده ده لره له دې چې شي ده ته (نسبت د) ولد،

تفسير: كتابيانو د خپلو انبياوو عليهم السلام په تعريف كې له مبالغې څخه كار آخيست، او له حدودو د باندې وتل، او خپل انبياء عليهم السلام يې د الله ځامن بلل، نو الله تعالى فرمايي چې: «د دين په خبرو كې مبالغه مه كوئ ! هومره خبره چې محققه وي له هغې څخه څه زياتوالى مه كوئ ! او د الله تعالى د مقدس شان په نسبت هم هغه خبرې وايئ؛ چې بيخي رښتيا او محققې دي !، او له خپله ځانه هيڅ شى مه وايئ !، له تاسې ځنې څومره لويه غلطي شوې ده، چې عيسى عليه السلام ته چې د الله جل جلاله رسول او د الله جل جلاله په حكم پيدا شوى دى؛ د وحيې په خلاف د الله جل جلاله ځوى وايئ، او د درې معبودانو معتقدان شوي يئ، يو الله جل جلاله، دويم عيسى عليه السلام، دريم بي بي مريم رضي الله تعالى عنها، له داسې خبرو ځنې مو خولې ونيسئ !، او الله تعالى واحد احد دى، هيڅوك له ده سره شريك نه دى،

او نه يې څوک اولاد کېدی شي، د ده پاک ذات له دې ګردو شيانو څخه پاک او منزه او مقدس دی، دا ګردې خبرې له دې نه پيدا شوي دي، چې تاسې د وحيې اطاعت ونه کړ، که تاسې د وحيې اطاعت او متابعت کولی؛ نو الله تعالی ته به مو د اولاد نسبت نه کولو.

او د درې معبودانو په منلو سره به مو ځانونه صراحتاً نه مشرکانول، او د سيد الرسل محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم او د افضل الکتب قرآن مجيد او فرقان حکيم تکذيب به مو نه کولو، او داسې پاخه کافران به نه کېدئ.

**فائده:** د کتابيانو يوې ډلې د عيسى عليه السلام رسالت هم ونه مانه، او د ده په وژلو پسې يې ملاوې وتړلې، چې د هغه ذکر پخوا تېر شو، بلې ډلې له دې نه تېرى کړى، عيسى عليه السلام يې د الله ځوى وګاڼه، او دواړه ډلې کافرانې شوې، د دې دواړو فرقو د ګمراهۍ سبب همدا شوه چې له وحيې څخه يې مخالفت وکړ، له دې نه ښکاره شوه چې نجات يوائې د وحيې په متابعت پورې منحصر دی.

لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيلًا ﴿١٧١﴾

خاص الله لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي (له علوياتو) او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي (له سفلياتو سره له آسمانونو او ځمکې ملکاً، خلقاً او عبيدًا) او بس دی الله وکيل (کار جوړوونکی).

**تفسير:** يعنې په آسمانونو او ځمکو کې له لاندې تر پاس پورې هر څه شيان چې دي؛ ټول د الله تعالی مخلوقات، مملوکات، او بندګان دي، او بيا وواييئ چې: د الله تعالی شريک او ځوى څوک او څرنګه کېدی شي؟ او الله تعالی د ګردو کارونو جوړوونکی دی، او د ګردو کارونو د جوړولو لپاره هم هغه بس او کافي دی، بل هيڅا ته حاجت نشته، نو اوس وواييئ چې: الله جل جلاله به شريک يا ځوى ته څرنګه محتاج شي؟ .

خلاصه يې دا چې نه په کوم مخلوق کې د ده د شريک کېدلو څه قابليت او لياقت شته، او نه د ده په پاک ذات کې د هغه د ځاييدلو څه امکان شته، او نه دې ورته څه اړتيا (احتياج) او حاجت لري، نو له دې نه دا معلومه شوه چې له مخلوقاتو څخه کوم يوه مخلوق ته د الله تعالی شريک يا ځوى ويل د هغه چا کار او فکر دی؛ چې له ايمان او عقل دواړو څخه محروم او بې برخې وي.

**فائده:** له پاس مضمون څخه دا خبره ښکاره شوه: هر هغه څوک چې د الله تعالی لپاره ځوى يا بل کوم شريک پيدا کوي؛ نو دی په حقيقت کې الله تعالی د ګردو موجوداتو پيدا کوونکی نه ګڼي، او ګرد موجودات د پاک الله مخلوق نه بولي، او هم الله جل جلاله د ګردو حاجتونو د پوره کولو او کار جوړولو لپاره کافي نه ګڼي، او ګواکې الله جل جلاله د الوهيت له مرتبې څخه وباسي، او په مخلوقاتو او ممکناتو کې يې داخلوي.

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ

له سره ننګ (او عار) نه کوي مسيح له دې نه چې شي بنده لپاره د الله، او نه (ننګ او عار کوي) پرښتې چې مقربې دي (د الله له بندګۍ څخه).

**تفسير:** يعنې د الله جل جلاله عبوديت، عبادت او د ده حکمونه په ځای راوړل يو اعلى درجه شرافت او عزت دی، د دې لوی نعمت د قدر، اهميت او د ضرورت پوښتنه دې له مسيح عليه السلام او نورو انبياوو عليهم السلام او مقربينو ملائکو څخه وکړی شي ! نو دوی د الله تعالی په عبادت ولې شرميږي؟ او عار او ننګ ترې کوي؟ هو ! ذلت او بېغيرتي خو د ما سوا الله په بندګۍ کې ده، لکه چې نصرانيان مسيح عليه السلام ته «ابن الله» وايي، او خپل معبود يې

ټاکلی دی، او مشرکان پرښتي د الله تعالی لوښې ګڼي، د دوی او د بتانو عبادت کوي، او د دوی لپاره تل ترتله عذاب او ذلت او سپکاوی شته.

وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا ﴿۱۷۲﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷۳﴾

او هر هغه څوک چې ننګ (او عار) وکړي له عبادت د دغه (الله) څخه او تکبر (لويي) وکړي) نو ژر به راجمع کړي (الله) دوی طرف خپل ته ټول (لپاره د جزا ورکولو). پس هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) پس پوره به ورکړي (الله) دوی ته اجرونه د دوی (چې وعده يې ورسره کړې شوې ده)، او زيات به (هم) ورکړي دوی ته له مهربانۍ خپلې، او هغه کسان چې ننګ (او عار) يې کړی وي، او تکبر (لويي) يې کړي وي (د الله له عبادت څخه) نو عذاب به ورکړي دوی ته (الله) عذاب دردناک، او نه به مومي دوی ځان ته بې له الله هيڅ دوست (نافع په آفاتو کې) او نه هيڅ مددګار (د افع د عذاب).

تفسير: يعنې هر هغه سړی چې د الله تعالی له عبادت څخه سرکښي کوي، او غاړه ترې غړوي؛ نو دی به له سره بې پوښتنې پاتې نه شي، بلکه يوه ورځ به دوی ګرد د الله تعالی په مخ کې ټول کړل شي، او حساب به ورسره وشي، نو هغه کسان چې ايمان يې راوړی وي، او ښه کارونه يې کړي وي، يعنې د پاک الله بندګي يې پوره په ځای کړې وي؛ نو دوی ته به د خپلو ښو کارونو پوره اجر او ثواب ورکړل شي، بلکه د الله تعالی په فضل او مهربانۍ به د هغوی له ثواب څخه زيات نور خورا لوی لوی نعمتونه هم ورکړی شي، او هغه کسان چې د پاک الله له عبادت نه يې سر غړولی وي، په لويو عذابونو کې به آخته شي، او هيڅوک به له هغو کسانو په داسې سختۍ کې هم د دوی خير غوښتونکی او مددګار نه وي؛ چې دوی هغه د الله تعالی په بندګۍ کې شريک کړی وو.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَاَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿۱۷۴﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۱۷۵﴾

ای خلقو ! په تحقيق راغلی دی تاسې ته برهان (دليل، سند، حجت چې محمد دی) له (طرفه د) رب ستاسې، او نازل کړی دی مونږ تاسې ته نور (رڼا) واضح ښکاره چې (قرآن دی). پس هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی په الله او منګولې يې خښې کړي دي په (دين د) ده؛ نو ژر به داخل کړي (الله) دوی په رحمت کې چې له جانبه د ده دی، او په مهربانۍ کې او هدايت به وکړي (وښيي الله) دوی ته خپل لوري ته لاره سمه صافه (د اسلام او اطاعت).

تفسير: پخوا له دې نه د الله جل جلاله د وحي او بالخصوص د قرآن عظيم د عظمت او د هغه د حقانيت بيان او د هغه د متابعت د تاکيد ذکر وو، او د هغه په ذيل کې د مسيح عليه السلام د الوهيت او د ابن الله توب ابطال څخه وروسته بيا د هم هغه اصلي او ضروري خبرې په نسبت ګردو ته تاکيد کيږي: چې ای خلقو ! تاسې ته د رب العالمين جل جلاله له

خوا كامل حجت او روښانه رڼا در رسېدلې ده، چې ستاسې هدايت ته بېخي كافي او وافي ده، يعنې قرآن عظيم الشأن، نو هر هغه څوك چې پر الله جل جلاله باندې ايمان راوړي او دغه مقدس كتاب مضبوط ونيسي؛ نو دى به د الله جل جلاله په رحمت او فضل كې داخلېږي، او هر څوك چې له هغه څخه مخالفت كوي، د دوى ګمراهي او خرابي فقط همدغه مخالفت ګڼل كيږي.

يَسۡتَفۡتُونَكَ قُلِ ٱللَّهُ يُفۡتِيكُمۡ فِي ٱلۡكَلَٰلَةِۚ

طلب د فتوى كوي دوى له تانه (اى محمده ! د كلالې) نو ووايه: چې الله فتوى دركوي تاسې ته په (ميراث) د كلالې كې.

تفسير: د «كلاله» معنى كمزور او ضعيف او دلته ترې مراد هغه مړى دى؛ چې د ده په وارثانو كې پلار او اولاد هيڅوك نه وي، لكه چې پخوا له دې هم بيان شو، ځكه چې اصلي وارث والد او ولد دى، څوك چې دا نه لري؛ نو د ده حقيقي ورور او خور د ځوى او لور حكم لري، او كه «حقيقي» نه وي، نو همدا حكم په «علاتي» كې هم دى: چې په پلار كې سره شريكان وي، كه يوه خور وي نيمايي، كه دوه خويندې وي دوه ثلثه، كه ورور او خور دواړه وي؛ نو نارينه ته دوه برخې او ښځې ته يوه برخه وررسيږي، كه تش يو ورور وي، خور هيڅ نه وي؛ نو دى د خور د مال وارث كيږي، يعنې ده ته هيڅ يوه برخه معينه نه ده، بلكه ټول وړي، ځكه چې هغه «عصبه» دى، لكه چې په راتلونكي آيت كې دا ګرد صورتونه مذكور دي، اوس پاتې شو، هغه خور او ورور چې يوازې په مور كې شريكان وي، چې دوى ته «أخيافي» وايي، نو د هغه حكم دغه سورت په شروع كې فرمايل شوى دى، او برخه يې معينه ده.

إِنِ ٱمۡرُؤٌاْ هَلَكَ لَيۡسَ لَهُۥ وَلَدٞ وَلَهُۥٓ أُخۡتٞ فَلَهَا نِصۡفُ مَا تَرَكَۚ

كه يو سړى مړ شي چې نه وي ده لره ځوى (او نه پلار) او وي ده لره يوه خور (عينيه يا علاتيه) نو (مقرر) دى دې ته نصف (نيم) د هغه مال چې پرېښى وي (مړي).

تفسير: يعنې كه يو سړى مړ شي او يوه خور ولري، نه ځوى ترې پاتې وي او نه پلار؛ نو دې ته د ميراث نيمايي مال ور رسيږي.

وَهُوَ يَرِثُهَآ إِن لَّمۡ يَكُن لَّهَا وَلَدٞۚ

او دا ورور ميراث وړي له دې خور څخه كه نه وي دې لره ځوى (ځوځات).

تفسير: يعنې كه د دې په عكس كومه ښځه بې ولده مړه شي، او له دې څنې «أعياني» يا «علاتي» ورور پاتې شي، نو دا ورور د خپلې خور د مال وارث كيږي، ځكه چې «عصبه» دى، او كه له دې ښځې څنې ځوى پاتې وي؛ نو ورور ته يې هيڅ نه ور رسيږي، او كه ترې لور پاتې وي، نو هغه مال چې د لور د برخې وركولو څخه وروسته پاتې وي؛ ورور ته وررسيږي، كه «أخيافي» ورور يا خور يې پرېښي وي، نو هغه ته شپږمه برخه معينه ده، لكه د دې سورت په ابتداء كې ارشاد وشو.

فَإِن كَانَتَا ٱثۡنَتَيۡنِ فَلَهُمَا ٱلثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَۚ

نو كه وي دا خويندې دوه (يا زياتې) نو مقرر دى دواړو ته دوه ثلثان له هغه ماله چې پرېښى دى (مړي).

تفسير: او كه دوه يا له دوو څخه زياتې خويندې ترې پاتې شي، نو دوی ته دوه ثلثه رسيږي.

وَإِن كَانُوٓا۟ إِخْوَةً رِّجَالًا وَنِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ ٱلْأُنثَيَيْنِ

او كه وو دا (وارثان) وروڼه او خويندې نارينه او ښځې؛ پس مقرر دی هر نارينه ته په اندازه د برخې د دوو ښځو.

تفسير: يعنې څه وروڼه او څه خويندې پرېږدي، نو ورور ته دوه برخې او خور ته يې يوه برخه ور رسيږي، لکه چې د اولاد حکم دی.

يُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمْ أَن تَضِلُّوا۟

بيانوي الله تاسې ته (احکام د ميراث) چې ګمراه (او خطا) نه شئ تاسې.

تفسير: يعنې رحيم او كريم الله محض د خپلو بندګانو د هدايت او د دوی د فلاح او نجات لپاره خپل صادق او حق احکام بيان فرمايي، لکه چې دلته يې د «کلاله» ميراث بيان کړی دی، الله جل جلاله له ګردو څخه غني او بې نياز دی، نو كه اوس څوک د الله تعالی د داسې مهربانۍ قدر ونه کړي، بلکه د ده د حکم څخه انحراف وکړي؛ نو هغه تل تر تله کمبخت او شقي پاتې کيږي.

له دې څخه دا راښکاره شوه چې بندګانو ته ښايي چې د ګردو احکامو متابعت وکړي، او كه په كوم معمولي او جزوي امر کې هم مخالفت کوي، نو ګمراه کيږي، نو بيا هغه کسان چې د ده په پاک ذات او په کماليه وو صفاتو کې د ده د حکم څخه مخالفت کوي، او خپل اعتقاد او خپله غوښتنه د الله جل جلاله په مقابل کې د ځان مقتدا ګرځوي، د هغو د ضلالت او خباثت درجه همدې نه قياس کړئ، چې په څه اندازه به وي.

وَٱللَّهُ بِكُلِّ شَىْءٍ عَلِيمٌۢ ﴿١٧٦﴾

او الله پر هر شي ښه عالم دی (نو د بندګانو مصالح هم په حيات او هم په ممات کې ورته معلوم دي).

تفسير: پخوا له دې نه معلومه شوې وه، چې الله تعالی د خپلو بندګانو هدايت خوښوي، اوس فرمايي چې ده ته ټول شيان معلوم دي، نو مطلب يې داسې شو، چې په ديني مسائلو کې که تاسې ته کوم ضرورت پېښ شي، د هغه پوښتنه کوئ! كله چې د دې ارشاد په تعميل کې لويو اصحابو رضي الله تعالی عنهم د «کلاله» د مسئلې پوښتنه وکړه؛ نو د هغوی د تحسين په لوري، او وروسته له دې نه د داسې سوالاتو کولو په نسبت د ترغيب اشاره فهميږي، او دا هم ترې مفهوميږي، چې الله جل جلاله ته ټول شيان معلوم دي او تاسې ته نه؛ نو دا هم نشئ ښوولئ چې په «کلاله» او په نورو صورتونو کې هغه برخې چې مقررې شوي دي، د هغوی حقيقي علت څه شی دی؟ او بيا د بني آدمانو عقل د دې خبرې قابل کله کېدی شي؛ چې د حق سبحانه وتعالی په ذات او صفاتو کې په خلاف د وحيې جرأت وکړي، کله چې دوی د خپلو تعلقاتو او د اقاربو او د خپلوانو له فرق او امتياز څخه عاجز او ناتوانه دي، نو د الله تعالی په بې مثله او بې سياله او بې شريکه ذات او صفاتو باندې د پاک الله له ښوونې څخه پرته څرنګه وپوهيږي؟ او په څه ډول يې راښکارولی شي؟.

تمت سورة «النساء» بفضل الله خالق الأرض والسماء!
ونرجو منه في الدنيا النعماء وفي الآخرة حسن اللقاء!

# سُوۡرَةُ المَائدَة

د«المائدة» سورت مدني دی، پرته له (۳) آيته چې په عرفات په «حجة الوداع» کې نازل شوی دی، په تلاوت کې (۵)، او په نزول کې (۱۱۲) سورت دی، (۱۲۰) آيتونه او (۱۶) رکوع لري. وروسته د «الفتح» له سورت څخه نازل شوی دی.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اَوۡفُوۡا بِالۡعُقُوۡدِ ؕ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) پوره کړئ تاسې ټول عهدونه.

تفسير: له عقودو څخه ټول لوظونه او پيمانونه مراد دي، برابره خبره ده چې هغه د الله تعالی سره وي، او که له مخلوق سره وي، له همدې تقرير سره سم د عقودو او مواعيدو په تفسير کې هغه مختلف شيان چې له اسلافو څخه منقول دي؛ هغه ټول سره تطبيقيږي، او په دې آيت کې د (ای مؤمنانو) د خطاب له لفظ څخه زيات لطف حاصليږي.

اُحِلَّتۡ لَـكُمۡ بَهِيۡمَةُ الۡاَنۡعَامِ

حلال کړی شوي دي تاسې ته (پس له شرعي ذبحې بې ژبي) چارپايان د انعامو (لکه اوښان، غوايان او پسونه).

تفسير: په (۶) جزء د «النساء» د سورت په (۱۶۰) آيت (۲۲) رکوع کې مونږ ولوستل چې: پر يهودانو باندې د دوی د ظلم او بد عهدی په سزا ځينې حلال او طيب شيان حرام، او دوی ترې محروم کړی شوي وو ﴿فَبِظُلۡمٍ مِّنَ الَّذِيۡنَ هَادُوۡا حَرَّمۡنَا عَلَيۡهِمۡ طَيِّبٰتٍ﴾ چې تفصيل يې د «الأنعام» په سورت کې راځي، دې مرحومه امت ته د عهدونو له ايفاء له هدايت سره؛ له دې شيانو څخه د انتفاع اجازه هم ورکړی شوې ده، يعنې اوښ، غويي، پسه، وزه او له دې جنسه څخه ټول أهلي او وحشي (کورني او ځنګلي) چارپايان لکه هوسی، غش غويي او نور ستاسې لپاره په هر حالت کې حلال کړی شوي دي، بې له هغو حيواناتو يا حالاتو چې د هغو په متعلق؛ يا حق تعالی په قرآن عظيم، يا د خپل نبي کريم صلی الله عليه وسلم په ژبه د ده په احاديثو کې ستاسې د جسماني يا روحاني يا اخلاقي مصالحو له امله ممانعت فرمايلی وي.

اِلَّا مَا يُتۡلٰى عَلَيۡكُمۡ

مګر (حلال نه دي) هغه چې لوستې به شي په تاسې باندې (وروسته له دې نه).

تفسير: غالبا له دې څخه مراد هغه شيان دي چې د همدې سورت په دريم آيت کې بيان کړی شوي دي، يعنې ﴿حُرِّمَتۡ عَلَيۡكُمُ الۡمَيۡتَةُ﴾ څخه نيولې تر ﴿ذٰلِكُمۡ فِسۡقٌ﴾ پورې.

غَيۡرَ مُحِلِّى الصَّيۡدِ وَاَنۡتُمۡ حُرُمٌ

حال دا چې نه يئ تاسې حلال ګڼونکي د ښکار حال دا چې تاسې احرام تړونکي يئ !.

**تفسير:** د مُحرِم لپاره يواځې د وچې د ساکښانو (ذي روحو) ښکار روا نه دی، او د سيند د ښکار اجازه ورته شته، کله چې د احرام دومره رعايت شوی دی، چې په هغه کې ښکار کول ممنوع ګرځول شوي دي، نو د حرم شريف د حرمت او عزت لحاظ ښايي له دې نه په درجو زيات وي، يعني د حرم د ساکښانو (ذي روحو) ښکار د محرم او غير محرم د ګردو لپاره حرام وي، لکه چې د ﴿لَاتُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللهِ﴾ له عمومه څخه معلومېږي.

إِنَّ اللهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ①

بېشکه الله حکم کوي (په تحليل او تحريم کې) د هر هغه څه چې اراده وفرمايي.

**تفسير:** يعنې هغه الله جل جلاله چې ګرد مخلوقات يې پيدا کړل، بيا يې پخپل حکمت او کمال سره د دوی په منځ کې د مراتبو فرق ښکاره کړو، په هره نوعه کې يې سم د هغه له استعداده بېل بېل فطري خواص او قواوې په وديعت کېښودې، د حيات او د ممات مختلف صورتونه يې تجويز کړل، بېشکه همغه الله جل جلاله ته پخپلو مخلوقاتو کې دا حق هم حاصل دی؛ چې د خپل کامل اختيار، محيط علم، بالغه حکمت په اقتضاء هر هغه شی چې هر چا ته په هر حالت کې اراده وفرمايي؛ حلال يا حرام يې کړي .﴿لَا يُسْئَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْئَلُونَ﴾.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللهِ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) مه ګڼئ حلال (مه بې حرمته کوئ !) شعائر (نښې د دين) د الله (چې د حج مناسک دي).

**تفسير:** يعنې هغه شيان چې د حق تعالی د عظمت او معبوديت لپاره خاص علامات او نښې مقررې شوي دي؛ د هغوی بې حرمتي مه کوئ ! چې دې کې حرم محترم، بيت الله شريف، جمرات، صفا، مروه، هدي، احرام، مساجد، آسماني کتابونه او نور ګرد حدود او فرائض او ديني احکام شامل دي، وروسته له دې علائمو او نښو څخه د ځينو مخصوصو شيانو ذکر فرمايي چې په مناسکو پورې تړلي دي، لکه چې له دې آيت څخه پخوا په بل آيت کې د مُحرِم ځينې احکام ذکر شول.

وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ

او مه (بې عزته کوئ !) مياشته حرمت والا (په قتال او جدال سره).

**تفسير:** حرمت والا مياشتې څلور دي، لکه چې د «التوبة» د سورت په (۵) رکوع (۳۶) آيت ﴿مِنْهَآ اَرْبَعَةٌ حُرُمٌ﴾ کې مذکور دی، او هغه ( محرم، رجب، ذي القعدة، ذي الحجة) دي، او تعظيم او احترام يې دا دی، چې ښايي په دې مياشتو کې له نورو مياشتو څخه د نېکی او تقوی زيات التزام وکړ شي !، او ښايي چې له شر او فساد څخه د ځان ژغورلو (بچ کولو) لپاره ډېر اهتمام وشي !، خصوصا نه ښايي چې حُجّاج وربړوي، يا د بيت الله له حج څخه يې ستانه (واپس) کړي.

اګر که دا امور د کال په دولسو مياشتو کې واجب العمل دي، مګر بالخصوص په دې محترمو مياشتو کې پرې ډېر زيات تاکيد شوی دی.

وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَآئِدَ

او مه (بې حرمته کوئ ! د) هغه ساکښ (ذي روح) چې د کعبې هديه وي (بې قلادې) او نه هغه (هديه) چې په غاړه کې يې قلادې وي (او د کعبې په لوري بيولې کېږي).

تفسير: (قلائد) د قلاده جمع ده، چې له هغې څخه هغه طوق يا هار يا غاړکۍ يا غړوندی مراد دی؛ چې د «هدي» د حيوان په غاړه کې د علامې او نښې په ډول اچول کيږي، څو د «هدي» حيوان پرې وپېژندل شي، او له تعرض څخه مأمون وي، او ليدونکي ته د هسې عمل د کولو ترغيب هم وشي، قرآنکريم د دې شيانو تعظيم او حرمت باقي پرېښود، او د «هدي» او د هغې د علائمو او نښو سره تعرض کول يې ممنوع کړل.

وَلَآ آٰمِّينَ ٱلۡبَيۡتَ ٱلۡحَرَامَ يَبۡتَغُونَ فَضۡلٗا مِّن رَّبِّهِمۡ وَرِضۡوَٰنٗاۚ

او مه (بې عزته کوئ !) قصد کوونکي (ورتلونکي) د کور حرمت والا ته (د حج يا د عمرې لپاره)، حال دا چې غواړي دوی فضل له (جانبه د) رب خپل او (د ده) خوښي.

تفسير: په ظاهر کې د غه وياړ (فخر) يواځې د مسلمانانو دی، يعنې هر هغه مخلص مسلمان چې د حج يا د عمرې لپاره ځي؛ د هغه تعظيم او احترام وکړئ ! او د دوی په لاره کې ډبرې مه اچوئ ! او ربړ (تکليف) مه ور رسوئ !.

وَإِذَا حَلَلۡتُمۡ فَٱصۡطَادُواْۚ

او کله چې (له احرامه څخه) حلال شوئ پس ښکار کوئ تاسې (که مو خوښه وي).

تفسير: يعنې د ښکار هغه ممانعت چې د احرام په حالت کې کړی شوی وو، د احرام له اتمام نه وروسته پاتې نشو.

وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَـَٔانُ قَوۡمٍ أَن صَدُّوكُمۡ عَنِ ٱلۡمَسۡجِدِ ٱلۡحَرَامِ أَن تَعۡتَدُواْۘ

او باعث دې نکړي تاسې دښمني د يوه قوم (لدی سببه) چې منعه کړي دي دوی تاسې لره له مسجد حرام څخه؛ په دې چې تاسې تجاوز وکړئ (پر هغوی په انتقام اخيستلو).

تفسير: يعنې (د کافر قوم بغض او دښمني دې تاسې دې ته اړ او باعث نه کړي؛ چې له خپله حده تېر شئ، او د دې تېرو شيانو حرمت ونه ساتئ)، هغه شعائر چې په لومړني آيت کې د الله تعالی له خوا لوی او محترم ښودل شوي وو، د مشرکانو له لوري په شپږم کال کې توهين او سپک شول، رسول الله مبارک نږدې له (۱۵۰۰) اصحابو سره د «ذي القعدة الحرام» په مياشت کې محض د عمرې د اداء کولو په قصد له مدينې منورې څخه رهي (روان) شول، کله چې «حديبي» ته ورسېدل، مشرکانو دوی د دې اسلامي عبادت له اداء کولو څخه منع کړل، دوی نه د احرام حالت، نه د کعبې شريفې د حرمت، نه د «شهر الحرام» د احترام، نه د «قلائد» او نه د «هدي» څه لحاظ او خاطر وکړ.

مسلمانانو د «شعائر الله» له دې توهين او د مذهبي فرائضو له دې ممانعت څخه چې د دې ظالم او وحشي قوم له لوري وشو؛ که هر څومره د غيظ، غضب، بغض او عداوت اظهار کړی وی؛ حق يې درلود (لرلو) او بېځايه نه وو، او که د دوی په مقابله کې د انتقام په ځوښ (جوش) کې له سده وتلي وی، او په کوم اقدام باندې يې لاس پورې کړی وی؛ هم ښاييدل او ممکن وو، ليکن د اسلام محبت او عداوت هم په عدل، انصاف او حقانيت بنا دي، لکه چې قرآن کريم د داسې جابرو او ظالمو دښمنانو په مقابل کې هم مسلمانانو ته حکم ورکړ چې: «خپل جذبات دې تر اداري لاندې ونيسي»، ځکه چې انسان د ډېر محبت او زيات عداوت په وخت کې په ځوښ (جوش) راځي، او د خپل ځان ادراه هيڅ نشي کولی، او له حده تېری کوي، نو ځکه يې وفرمايل چې: ښايي د خورا (ډېر) سختو دښمنانو عداوت او دښمني هم تاسې د عدل او انصاف له دائرې څخه ونه باسي، او د عدل او انصاف واکې مو له لاس څخه خوشې نه شي.

وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ۚ

او مرسته کوئ تاسې یو تر بله په نېک کار او تقوی (پرهېزګارۍ) کې، او مه کوئ تاسې مرستې یو تر بله پر ګناه او پر عدوان (ظلم تجاوز).

تفسیر: که کوم سړي بالفرض د انتقام په ځوښ (جوش) کې راشي، او تېرۍ وکړي؛ نو د هغه د ممانعت تدبیر دا دی چې دمسلمانانو جماعت دې نه یوائې له ده سره په هغه ظلم او عدوان کې مرسته ونه کړي، بلکه ګرد سره دې لاس یو، او د نیکۍ او تقوی مظاهره دې وکړي !(او د ده د زیادت او بې اعتدالۍ مخه دې ونیسي !.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢﴾

او وویرېږئ تاسې له الله څخه، بېشکه چې الله ډېر سخت دی عذاب ( د ده متخلفینو لره).

تفسیر: یعنې د حق پرستۍ او انصاف خوښولو او د ګردو ښو اخلاقو بیخ د پاک الله څخه وېره ده، او که د الله جل جلاله څنې وېره، او په نېکۍ کې تعاون او په بدۍ کې عدم تعاون نه وي؛ نو د عمومي عذاب د وقوع اندېښنه وه (أعاذنا الله منه !)، څرنګه چې الله جل جلاله د هغو شیانو د بیان اراده وفرمایله، چې وعده یې په ﴿إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ کې کړې شوې وه، نو دا آیت نازل شو:

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَن تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ۚ ذَٰلِكُمْ فِسْقٌ ۗ

حرام کړې شوې دي پر تاسې (خوراک د) مردار (حیوان) او (د بهیدونکې) وینې، او د غوښې د خنځیر، او د هر هغه (حلال کړی شوي حیوان) چې آواز کړی شوی وي بې له (نامه) د الله (د بل شي) په هغه باندې (د ذبحې په وخت کې)، او د خپه کړی شوي، او د کوتک (او د نورو) وهلی شوي، او د غورځېدلي (له پاسه ژورې ته)، او د ښکر وهلي شوي، او د هغه چې (ترې) خوړلې وي ځناورانو، مګر (روا دی) هغه چې حلال (یې) کړئ تاسې (او روح په کې وي)، او (حرام دی) هغه چې ذبح کړی شوي وي (په نامه د کوم ممنوعه ځای یا شي) او دا چې تقسیم وکړئ تاسې په غشو د قمار سره، دغه (تېر محرمات یا تقسیم یا تفاؤل په دې غشو سره ګناه او) فسق دی.

تفسیر: یعنې حرام کړی شوي دي پر تاسې دغه لس شیان:

۱ – «میتة» یا مرداره چې بې ذبحې مړه شوي وي (بې له ماهي او ملخه) حرامه ده، «میتة» هغه واجب الذبح حیوان ته ویلی شي، چې بې له حلالولو په خپل مرګ مړ شي، او وینه او غریزي حرارت یې په غوښه کې محتقن او جذب شوي پاتې شي، چې د هغه له زهریله توب او ګندګۍ څنې څو راز بدني او دیني ضررونه پیدا کیږي.

۲ – د بهیدونکې وینې خوراک حرام دی، لکه چې په (۸) جزء د الأنعام په (۱۴۶) آیت (۱۸) رکوع کې ﴿أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا﴾ راغلي دي.

۳ – د خنځیر د غوښې خوراک حرام دی، او د خنځیر د نورو ګردو اجزاوو څخه تر نوکانو او ویښتانو پورې هم هر راز انتفاع ناروا ده.

۴ – د هغه مذبوح خوراک حرام دی؛ چې بې د الله تعالی له نامه څخه د بل چا نوم پرې یاد کړی شوی وي.

۵ – د هغه مړه خوراک حرام دی؛ چې په خپه کېدلو (زندی کېدلو) یې روح (سا) ختلې وي.

۶ – د هغه مړه خوراک حرام دی، چې په کوتک یا په غونډه تیږه (ګټه) چا وهلی وي.

۷ – د هغه مړه خوراک حرام دی؛ چې لوېدلی وي له غره یا له کمره یا په کوهي کې.

۸ – د هغه مړه خوراک حرام دی؛ چې بل غوايي په ښکر وهلی وي.

۹ – د هغه مړه حیوان خوراک حرام دی؛ چې درندګانو ترې څه اندازه غوښه خوړلې وي او بیا یې روح ختلی وي، (مګر هغه مړ له دې پنځو واړو وروستنیو څخه چې ژوندی پاتې وي، او بیا یې په نامه د الله جل جلاله ذبح کړي، نو د هغه خوراک روا دی).

۱۰ – د هغه مړه خوراک حرام دی؛ چې په هغو تیږو (ګټو) ذبح کړی شوی وي چې د «کعبې شریفې» نه ګېر چاپېره ولاړې دي، او مشرکانو به د تعظیم لپاره پرې قرباني کولې، یا ترې مطلق بتان مراد دي.

لږ څه وړاندې د «هدي» د ادب او احترام ذکر تېر شو، یعنې هغه ساکښ (ذي روح) چې د تقرب الی الله په نیت د الله تعالی له ګردو څخه د پخوانی معبد مکې معظمې ته د نذر په ډول بېول کېدل، او هلته به ذبح کېدل، د هغه په مقابل کې د هغه ساکښ (ذي روح) ذکر یې وفرمایه، چې د بل چا په نامه یا د بیت الله څخه ما سوی په بل کوم ځای کې د بل چا یا د بـل ځای د تعظیم لپاره ذبح کیږي (موضح القرآن).

په دې دوهم صورت کې د نذر نیت هم في الحقیقت د غیر الله په نامه وي، اګر که د ذبحې په وخت کې له ژبې څخه «بسم الله، الله اکبر» هم وویل شي، سم له دې تقریر سره د ﴿وَمَآ أُهِلَّ لِغَيۡرِ ٱللَّهِ بِهِۦ﴾ او د ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ﴾ فرق واضح شو (ابن کثیر رحمه الله).

﴿وَأَن تَسۡتَقۡسِمُواْ بِٱلۡأَزۡلَٰمِ﴾: «او حرام کړی شوي دي دا چې تقسیم وکړئ تاسې د قمار په غشو سره»، ځینې مفسرین د «ازلام» ځنې د تقسیـم غشي مرادوي، چې د جاهلیت په زمانه کې د ذبحې غوښې او د نورو تقسیم لپاره استعمالېدل، او هغه د قمار (جواری) یو صورت وو، لکه نن ورځ د کاغذ اچولو (لاټرۍ) رسم دی، لیکن د «حافظ عماد الدین ابن کثیر رحمه الله» او نورو محققینو په نزد دا خبره راجحه ده، چې له «ازلام» څخه غشي مراد دي، چې په هغه سره د مکې معظمې مشرکانو د کوم اشکال او تردد په وخت کې به د خپلې ارادې او د چارې فیصله او پرېکړه پرې کوله، دا غشي بـه یـې په بیت الله کې د قریشو خورا (ډېر) لوی بت (هُبل) سره کېښودل، د دې غشو پر ځینو باندې داسې لیکل شوي وو «أمرني ربي» =«حکم راکړی دی ما ته رب ځما»، او پر ځینو یې داسې لیکلی شوي وو «نهاني ربي» =«منع کړی یم زه رب ځما» همداسې پر هر غشي یوه قیاسي او اټکلي خبره لیکلې شوې وه.

کله چې به دوی ته په کومه خبره کې څه تردد او اندېښنه پېښېده؛ نو دوی به تلل او یو غشی به یې راخیست، که د «أمرني ربي» والا غشی به یې په لاس ورته؛ نو په کار به یې شروع کوله، او که مخالف له هغه به یې په لاس ورته؛ نو له کار ځنې به تښتېدل، وعلی هذ القیاس ګواکې دا له بتانو ځنې یو راز مشوره او استعانت وو، څرنګه چې د دې رسم بنا پر خالص شرک، جهل، اوهام پرستی، او په افترا علی الله باندې وه؛ نو ځکه «قرآن کریم» په متعددو مواقعو کې په نهایت تغلیظ او تشدید سره د هغه حرمت ښکاره کړ.

سم له دې تقریر سره د «ازلام» ذکر له «النصب» سره مناسبت پیدا کړ، او دا یې له مرداري وینې او خنځیر او نورو ډېرو خبیثو او ګنده وو شیانو د تحریم له سلسلې سره منسلک، او دا یې راښکاره کړه چې د دوی معنوي او اعتقادي نجاست او خباثت، له دې شیانو له پلیتی ځنې لږ نه دی، لکه چې په بل آیت کې د «رجس» له اطلاقه څخه دا خبره لا ښه څرګندیږي.

﴿اَلْيَوْمَ يَىِٕسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ﴾

نن ورځ نا اميده شول هغه کسان چې کافران شوي دي له (ابطاله د) دين ستاسې، نو مه ويرېږئ له دغو (کفارو نه اې مؤمنانو) او وويرېږئ له ما نه (چې ستاسې خالق يم).

**تفسير:** دا آيت هغه وخت نازل شو چې د ژوندانه په ټولو څانګو او د هدايت د علومو د هرې موضوع په متعلق کې اصول او قواعد داسې ممهد، او د فروعو او جزئياتو بيان هم په هومره کافي تفصيل او جامعيت سره منظم شوی وو؛ چې د اسلام پيروانو ته تر قيامت پورې د الهي دين څخه ما سوا بل کوم دين بيخي د منلو او د التفات وړ (مستحق) او لايق نه وو پاتې شوی.

مکه معظمه فتحه شوې وه، اصحاب کرام رضوان الله تعالى عليهم أجمعين سره له کاملې وفا له خپل الله «جل وعلا شأنه» سره خپل عهد او پيمان پوره کولو، هغه قوم چې د ګنده او پليتو غذاګانو او د مردارو حيواناتو په خوړلو عادت درلود (لرلو)؛ له مادي او معنوي طيباتو څخه خوند اخيستی وو، د الله جل جلاله د شعائرو احترام په زړونو کې راسخ او ټينګ شوی وو، د ګومانونو او اوهامو تارونه او جالونه او د انصابو او ازلامو عقيدې بيخي شلېدلې وې، او شيطان د تل لپاره له دې څخه چې په «جزيرة العرب» کې يې عبادت وشي؛ بيخي مأيوس شوی وو، نو نظر دغو حالاتو ته ارشاد وشو: ﴿اَلْيَوْمَ يَىِٕسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ﴾ .

يعنې نن کفار له دې خبرې څخه مايوس کړی شوي دي، چې تاسې له خپل قيّم دين څخه واړوي، او بيا مو د «انصاب» او «ازلام» او نورو په لوري بوځي، يا د اسلامي دين د مغلوبولو توقعات په خپلو زړونو کې وګرځوئ، يا په ديني احکامو کې د تحريف او تبديل اميدونه ولرئ، نن تاسې ته يو کامل او مکمل دين در رسېدلی دی، چې وروسته په هغه کې د هيڅ يو قسم ترميم ضرورت او امکان نشته، د الله جل جلاله انعام پر تاسې شوی دی، چې وروسته له دې نه ستاسې له طرفه د هغه د ضايع کېدو هيڅ اندېښنه نشته، پاک الله تر ابده پورې همدا د اسلام دين ستاسې لپاره غوره کړی دی، نو څکه وروسته له دې نه د کوم ناسخ د راتللو احتمال هم نه دی پاتې.

په داسې حالاتو کې تاسې ته هيڅ سبب او دليل نشته، چې له کفارو څنې وويرېږئ، ولې چې کفار تاسې ته هيڅ نقص او تاوان نشي در رسولی، هو ! د هغه لوی محسن او حقيقي منعم له قهره او ناراضۍ څخه تل وويرېږئ !، چې د ده په واک او اختيار کې ستاسې فلاح او نجاح او ګټه او زيان دی.

ګواکې په ﴿فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ﴾ کې يې په دې مطلب تنبيه فرمايلې ده، چې وروسته له دې نه مسلمانانو ته د کفارو له لوري تر هغه وخته پورې هيڅ وېره او اندېښنه نه ده پکار؛ تر څو چې په دوی کې د الله «جل وعلا شأنه» وېره، او د تقوی شان موجود وي.

له ﴿اَلْيَوْمَ﴾ څنې دلته يوه معينه ورځ نه ده مقصود، بلکه حاضره زمانه، او وروپورې متصلې راتلونکې زمانې مقصد دی، او څينې ترې يوم النزول مرادوي؛ چې هغه د هجرت د نهم کال د ذي الحجې د نهمې نېټې د جمعې او عرفې مازديګر وو.

﴿اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ﴾

نن ورځ مکمل (پوره) کړ ما تاسې ته دين ستاسې (اصُولاً او فروعاً).

**تفسير:** يعنې د ده په اخبارونو او قصصو کې پوره صداقت، او په بيان کې يې پوره تأثير، په احکامو کې يې پوره اعتدال شته، هغه حقائق چې په پخوانيو کتابونو او نورو آسماني اديانو کې محدود او نا تمام وو؛ د هغوی تکميل او تعميم هم

دې قيم دين سره وكړ شو، هغه احكام چې كتاب الله او د رسول الله سنتو د «حل» او «حرمت» او نورو احكامو په نسبت تنصيصا يا تعليلا صادر كړی دی، د هغوی اظهار او ايضاح خو همېشه كيږي، ليكن د زيادت يا قلت د ترميم ګنجائش په كې له سره نشته.

وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي

او تمام (پوره) مې كړ پر تاسې (ای مؤمنانو !) نعمت خپل (د دين په اكمال).

تفسير: له ګردو څخه لوی احسان خو همدا دی؛ چې اسلام غوندې يو مكمل او ابدي دين او د خاتم الأنبياء صلى الله عليه وسلم په شان يو لوی (نبي) يې تاسې ته مرحمت فرمايلی دی.

وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا

او غوره كړ ما تاسې ته اسلام له جهت د دين (ډېر پاكيزه په ټولو اديانو كې).

تنبيه: دغه د ﴿ٱلْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ الآيه ـ آيت نازلول هم د لويو نعمتونو له جملې څخه يو نعمت دی؛ نو ځكه ځينو يهودانو د عمر فاروق رضي الله عنه په حضور كې عرض وكړ: «يا أمير المؤمنين ! كه دا آيت پر مونږ نازل شوی وو؛ نو مونږ به يې «يوم النزول» د خپل ځان لپاره اختر ګرځولی وی»، عمر فاروق رضي الله تعالى عنه وفرمايل: «په هغې ورځې كې چې دا آيت نازل شو؛ پر مونږ مسلمانانو دوه اخترونه سره جمع شوي وو»، دا آيت د هجرت په (۹) كال د «حجة الوداع» په موقع د عرفې او جمعې په ورځې د مازيګر په وخت په داسې حالت كې نازل شو، چې د «عرفات» په ميدان كې د نبي كريم «صلى الله عليه وعلى آله وصحبه أفضل الصلاة والتسليم» د اوښې په چپ چاپېر كې له (۴۰۰۰۰) تنو څخه زيات اتقياء او ابرار «رضي الله تعالى عنهم أجمعين» سره راټول شوي وو، وروسته له دې نه رسول الله مبارك فقط (۹۱) يا (۸۱) نورې ورځې په دنيا كې تشريف درلود (لرلو).

فَمَنِ اضْطُرَّ فِي مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّإِثْمٍ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝٣

نو هر څوك چې اړ شو (خوراك د حرام شي ته) په سخته لوږه كې، حال دا چې نه وي مائل ګناه ته (په خوراك زيات له كفافه يا د لذت لپاره)؛ پس بېشكه الله ښه مغفرت كوونكی دی (د خطياتو) ډېر رحم كوونكی (چې نه يې نيسي په دغه خوراك).

تفسير: يعنې د حلالو او حرامو قانون خو مكمل شوی دی، اوس په هغه كې هيڅ ډول تغيير او تبديل نشي كېدی، هو ! مضطر چې د لوږې او تندې له شدته بې تابه او ناچاره شوی وي، كه حرام شی وخوري، يا يې وڅښي، او خپل ځان له هلاكت څخه پرې وژغوري (وساتي)، په دې شرط چې د ضرورت له مقداره متجاوز نشي، او لذت ترې مقصود نه وي ﴿غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ﴾؛ نو حق تعالى به دا د حرامو تناول په خپل فضل او مهرباني سره ورمعاف كړي، ګواكې هغه شی خو همغسې حرام پاتې دی، مګر هغه سړی چې د دې حرامو خوړونكی او څښونكی وي؛ د الله تعالى په نزد مجرم نه ګڼل كيږي، دا هم د نعمت د اتمام يوه نوعه ده.

يَسْأَلُونَكَ مَاذَا أُحِلَّ لَهُمْ ۖ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ ۙ

پوښتنه كوي دوی له تانه (ای محمده !) چې كوم شی حلال كړی شوی دی دوی ته؟ ووايه: حلال كړی شوي دي تاسې ته طيبات (پاك شيان).

**تفسير:** په لومړني آیت کې د حرامو شیانو بیان وشو، نو په طبیعي ډول سره داسې یو سوال پیدا کیږي، چې حلال شیان کوم کوم دي؟ نو ځواب یې ورکړ شو، چې د حلالو دائره خو ډېره وسیعه ده، هغه شیان پربېږدئ چې په هغو کې دیني یا بدني نقصانونه دي، نور د دنیا ګرد پاکیزه او ستره شیان حلال دي.

وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ

او (حلال کړی شوی دی تاسو ته ښکار د) هغه چې ښوونه کړي وي تاسې له (ټولو اقسامو) ښکار کوونکو (حیواناتو یا مرغانو) څخه چې ښوونه کوونکي اوسئ تاسې (په ښکار ځغلولو د دوی) چې ښوونه وکړئ تاسې ورته له هغه نه چې ښوولي دي تاسې ته الله، پس خورئ تاسې له هغه ښکاره چې نیولی یې وي تاسې ته (له انعامو او طیورو نه) او یادوئ تاسې نوم د الله په هغه (ښکاري حیوان کله چې ښکار ته یې لیږئ !) (یا) او یادوئ تاسې نوم د الله په (حلالولو د) هغه (ښکار کې که ژوندی مو مینده کړ).

**تفسير:** د ښکاري سپي او باز او نورو ښکار کوونکو ساکښانو (ذي روحو) ښکار په دې شرطونو سره حلال دی:

۱ – دښکار کوونکو ذي روحو ښه عادت کول، چې تعلیم یې موندلی وي.

۲ – پر ښکار باندې خوشې کړ شي.

۳ – په همغه طریقه سره تعلیم ورکړی شوی وي؛ چې په شریعت کې د اعتبار وړ وي، یعنې سپي او نورو ته داسې تعلیم ورکړی شوی وي؛ چې ښکار ونیسي، او همغسې یې خپل خاوند ته وروړي، او ویې نه خوري، او باز ته داسې تعلیم ورکړی شوی وي؛ چې د بلنې په وخت کې خپل خاوند او بلونکي ته ژر بېرته ورشي.

که سپی ښکار په خپله وخوري، یا باز چې په بلنه سره بېرته رانشي، نو داسې فهمیږي کله چې دوی د خپل خاوند په بلنه بېرته نه راځي، او د ده په خوله نه کیږي؛ نو هغه ښکار هم د خپل خاوند لپاره نه، بلکه خپلو ځانونو ته یې کړی دی.

۴ – د خوشې کولو په وخت کې د الله تعالی نوم یاد کړ شي ! یعنې بسم الله وایي ! او ورخوشې یې کړي، د دې څلورو واړو شرطونو تصریح خو په قرآني نص کې شوې ده.

که له دې شرطونو څخه یو شرط هم مفقود شي، نو هغه ښکار چې ښکاري ساکښ (ذي روح) وژلی وي؛ حرام دی، هو ! که مړ شوی نه وي، او ذبح کړ شي، نو د ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ په قاعده سره جلا کیږي.

وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٤﴾

او وویرېږئ تاسې له الله !، بېشکه چې الله ډېر چابک دی حساب (د ده، چې ډېر ژر د ګردو مخلوقاتو حساب خلاصوي).

**تفسير:** یعنې په هر حالت کې له الله تعالی څخه وویرېږئ ! چې چېرې د «طیبات» په استعمال او د ښکار او د نورو شیانو د منتفع کېدلو په وخت کې له شرعي حدودو څخه متجاوز نشئ !.

﴿اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۪ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۫ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَاۤ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْۤ اَخْدَانٍ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِالْاِيْمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ۫ وَهُوَ فِي الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ۝۵﴾

نن ورځ حلال کړی شوي دي تاسې ته ټول طيبات (پاکيزه شيان) او (هر قسم) طعام د هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب حلال دی تاسې ته، او (هر قسم) طعام ستاسې حلال دی دوی ته، او (حلالې دي تاسې ته بې مېړه ـ بې خاونده) پاک لمنې اصيلې ښځې له مؤمنانو ښځو څخه او پاک لمنې (بې مېړه ـ بې خاونده) اصيلې ښځې له هغو کسانو چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب له تاسې پخوا، کله چې ورکړئ دغو (ښځو) ته مهرونه د دوی (ای مېړونو د نکاح د قيد راوړلو لپاره)، حال دا چې نکاح کوونکي يئ تاسې نه زنا کوونکي (ښکاره) او نه نيوونکي د يارانو (په پټه سره)، او هر څوک چې کافر (منکر) شو په ايمان (او مؤمَن به شيانو) پس په تحقيق ضايع (باطل) شو عمل د ده، او دی به آخرت کې له زيانکارانو څخه وي.

**تفسير:** دلته له «طعام» څخه مراد «ذبيحه» ده، يعنې که کوم يهودي يا نصراني (په دې شرط چې وروسته د اسلام له ارتداده يهودي يا نصراني نه وي پاتې) که د حلال ساکښ (ذي روح) د حلالولو په وخت کې د غير الله نوم وا نه خلي؛ نو د هغه خوراک مسلمان ته حلال دی، د مرتد احکام بېل دي.

د کتابيانو له يوه مخصوص حکم سره يې بل مخصوص حکم هم بيان کړ، يعنې له کتابي ښځې سره نکاح تړل په شريعت کې جايز، او له مشرکې ښځې سره ناروا دي، لکه چې د دويم جزء د البقره سورت په (۲۲۱) آيت (۲۷) رکوع کې مو ﴿وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ﴾ ولوست.

مګر دا خبره په ياد ولرئ چې څمونږ په زمانه کې «نصارى» عموما په نامه «نصارى» پاتې دي، په دې نصرانيانو کې زياتره داسې کسان دي، چې نه پر کوم آسماني کتاب قائلان دي، نه الله جل جلاله مني، نه رسول، نه مذهب لري، نو څکه د اهل کتابو اطلاق پر دوی نه شي کېدی، لهذا د دوی په مذبوحو او ښځو باندې هغه احکام نه مرتب کيږي؛ چې د حقيقي کتابيانو په ذبائحو او ښځو مرتب دي.

دا خبره دې هم په نظر کې ونيول شي ! چې د يوه شي د حلالېدو دا معنی ده، چې پکې «في حد ذاته» د تحريم کومه وجه نه وي، ليکن که خارجي اثرات او حالات داسې وي، چې له هغه حلال شي څخه په ګټه اخيستلو کې د ډېرو محرماتو ارتکاب واقع کيږي، بلکه په کفر کې د مبتلا کېدو احتمال هم وي، نو له هسې حلال شي څخه د ګټې اخيستلو اجازه نه ورکوله کيږي.

په موجوده زمانه کې له يهودو او نصاراوو سره خوړل او څښل، او بې ضرروته اختلاط او ګډون کول او د دوی د ښځو په جال کې ځان بندول، هسې خطرناک او ويروونکي نتايج لري، چې هغه د هيچا له نظره پټ نه دي، نو د داسې بدئ او بې دينئ له اسبابو، او ذرائعو څخه هرومرو (خامخا) اجتناب په کار دی !.

له کتابيانو ښځو سره چې د نکاح تړلو اجازه شوې ده، د هغه فائده ښايي دا وي چې د مؤمن حقانيت او اسلامي اخلاق د ښځې په زړه کې ځای ونيسي، داسې نه چې مؤمن پر هغو کتابيانو هسې مين او مفتون شي، چې بالعکس خپله ايماني متاع له لاسه وباسي، او په سپيره ډاګ ميدان کې کيني، او د ﴿خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ﴾ مصداق شي، کله چې له کافرې

ښځې سره د دې فتنې احتمال قوي کېدی شي، نو ځکه د ﴿وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ﴾ تحديد خورا (ډېر) مناسب او پر خپل ځای کې دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ فَٱغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى ٱلْمَرَافِقِ وَٱمْسَحُواْ بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى ٱلْكَعْبَيْنِ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) کله چې پاڅېږئ تاسې لمانځه ته (او بې اوداسه يئ) نو ووينځئ تاسې مخونه خپل او لاسونه خپل تر څنګلو پورې (سره له څنګلو) او مسح وکړئ تاسې په سرونو خپلو او (ووينځئ تاسې) پښې خپلې تر پړکيو پورې (سره له پړکيو)،

تفسير: ﴿إِذَا قُمْتُمْ إِلَى ٱلصَّلَوٰةِ﴾ کله چې پاڅېږئ تاسې لمانځه ته يعنې که له خوبه پاڅېږئ يا دنيوي مشاغلو څنې لاس باسئ او لمانځه ته ولاړ شئ، نو لومړی اودس وکړئ ! ليکن اودس کول هلته ضرور دي چې سړی اودس ونه لري، د دې آيت په آخر کې د دې احکامونو هغه غرض او غايې څخه چې په ﴿وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ﴾ کې فرمايلې شوی دی؛ معلومېږي چې د لاسونو، خولې، او نورو اعضاوو د وينځلو وجوب د دې لپاره دی چې حق تعالی تاسې پاک کړي، او په خپل دربار کې تاسې ته ځای درکړي، نو که دا پاکي لا له پخوا څخه حاصله وي، او د اوداسه کوم ماتوونکی شی په مينځ کې پېښ شوی نه وي، نو د پاکو اندامونو د بيا پاکولو هيڅ ضرورت نشته، بلکه د هغه په ضروري کولو سره په «امت» باندې حرج پېښېږي، چې د هغه نفي په ﴿مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ﴾ کې کړی شوې ده، هو ! که زيات نظافت، نورانيت، او نشاط حاصلولو لپاره نوی اودس وکړی شي، نو مستحب دی.

﴿وَٱمْسَحُواْ بِرُءُوسِكُمْ﴾ «او مسح وکړئ تاسې په سرونو خپلو» يعنې لوند لاس پر سر باندې راکاږئ !.

﴿وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى ٱلْكَعْبَيْنِ﴾ «او ووينځئ تاسې پښې خپلې تر پړکيو پورې» د (أرجلكم) معطوف عليه مغسولات دي، يعنې همغسې چې د مخ او د لاسونو د وينځلو حکم دی؛ پښې دې هم تر پړکيو پورې ووينځلی شي، او د سر غوندې مسح ورته کافي نه ده، لکه چې څمونږ «أهل السنت والجماعت» پرې اجماع کړېده، او له ډېرو احاديثو څخه هم دا ثابته شوې ده، چې که په پښو موزې نه وي، نو وينځل يې فرض دي، (مګر پر بوټونو او موزو سم له هغو شرائطو چې په فقهي کتابونو کې مذکور دي؛ مقيم لره يوه شپه او ورځ او مسافر لره تر درې شپو او ورځو پورې مسح کول هم روا دي.

وَإِن كُنتُمْ جُنُبًا فَٱطَّهَّرُواْ

او که وئ تاسې جنبان (يعنې په جنابت کې وئ) نو ښه ځان پاک کړئ !

تفسير: يعنې له جنابت څنې د پاکېدلو لپاره يواځې د همدې څلورو واړو اعضاوو وينځل او مسح کول کافي نه دي، بلکه د بدن ټولې سطحې ته تر هغو ځايونو پورې چې د اوبو رسونه ورته بې له ضرره ممکن وي؛ د اوبو رسونه ضروري ده.

وَإِن كُنتُم مَّرْضَىٰٓ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ ٱلْغَآئِطِ أَوْ لَٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُواْ مَآءً فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا فَٱمْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُم مِّنْهُ ۚ مَا يُرِيدُ ٱللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُم مِّنْ حَرَجٍ

او که وئ تاسې مريضان (رنځوران او اوبه درته مضرې وې) يا په سفر (کې وئ) يا راغی يو له تاسې له ځايه د بولو څخه (يعنې بې اودسه شوئ) يا جماع وکړئ تاسې له ښځو سره، نو ونه مومئ

تاسې اوبه؛ نو قصد و کړئ تاسې د خاورې پاکې نو (ووهئ لاسونه دوه ځلې پر څمکه او) ومښئ تاسې (دا لاسونه) په مخونو خپلو او لاسونو خپلو له هغې (خاورې) څخه، اراده نه لري الله (د تطهير په دې تکليف کې پر تاسې دا) چې مقرر کړي پر تاسې څه حرج (تنګوالی يا سختي).

تفسير: د اوداسه او غسل په تيمم کې هيڅ فرق نشته، ځکه د تيمم له مشروعيت څخه چې کوم غرض دی؛ هغه په هر صورت کې په يو شان حاصلېږي.

تنبيه: د ﴿أَوْ لَـٰمَسْتُمُ ٱلنِّسَآءَ﴾ ترجمه چې په جماع سره شوې ده، د ابن عباس رضي الله تعالی عنه او ابو موسی اشعري رضي الله تعالی عنه له تفسير سره موافقه ده، چې ابن مسعود رضي الله تعالی عنه هم هغه سکوتا منلې ده (کما في البخاري).

﴿وَلَـٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۝٦﴾

او ليکن اراده لري (الله د دې) چې پاک کړي تاسې (له صوري او معنوي پليتی نه) او د دې لپاره چې پوره کړي (الله) نعمت (احسان) خپل پر تاسې (په اسلام او د شرائعو په بيان) لپاره د دې چې تاسې شکر ګذار شئ !.

تفسير: دا ښوونه هم في حد ذاته يو نعمت دی، او په ظاهري بدن باندې له اوبو تېرولو يا په خاورو سره له مسح کولو څخه بنده ته باطني پاکي ورکول بل نعمت دی، بنده لا د لومړنيو نعمتونو شکر نه وو ادا کړئ، او د هغو د شکر د اداء کولو په قصد وو، چې په دې نويو نعمتونو فائض شو، نو ځکه ارشاد وشو ﴿لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ يعنې د پخوانيو نعمتونو له يادولو څخه پخوا د دې جديدو نعمتونو شکر ښايي اداء کړئ ! چې د اوداسه د احکامو په ضمن کې پر تاسې شوي دي.

﴿وَٱذْكُرُوا۟ نِعْمَةَ ٱللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَـٰقَهُ ٱلَّذِى وَاثَقَكُم بِهِۦٓ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ۝٧﴾

او ياد کړئ تاسې نعمت (احسان، رحمت) د الله پر تاسې (چې اسلام دی) او (ياد کړئ) عهد محکم د الله هغه (عهد) چې محکموالی کړی دی (الله) له تاسې سره په هغه سره کله چې وويل تاسې: وارېده مونږ (وينا ستا) او ومو منه (فرمان ستا)، او ووېرېږئ له الله (په هېرولو د نعمت او ماتولو د بيعت کې) بېشکه چې الله ښه عالم دی په خبرو د سينو (او په حالاتو د زړونو هم).

تفسير: غالبا دا همغه عهد دی چې په «۳» جزء د «البقره» سورت په خاتمه په (۲۸۵) آيت (۴۰) رکوع کې يې د مؤمنانو له ژبې څخه نقل فرمايلی وو: ﴿وَقَالُوا۟ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ ٱلْمَصِيرُ﴾ کله چې اصحاب کرام رضي الله تعالی عنهم د محمد صلی الله عليه وسلم پر مبارک لاس بيعت کولو، په دې وخت کې يې هم داسې اقرار کولو چې: «مونږ له خپل توان سره سم ستاسې هره خبره اورو، او منو يې، برابره ده چې هغه څمونږ له طبيعت سره موافقه وي او که مخالفه»، دا خو عمومي عهد وو، وروسته له دې اسلام د ځينو ارکانو له حاله سره مناسب د خپلو نورو اهمو شيانو په نسبت خصوصي عهد هم له دوی څخه اخيستل کېده.

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُونُوا۟ قَوَّٰمِينَ لِلَّهِ شُهَدَآءَ بِٱلْقِسْطِ ۖ﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) اوسئ تاسې محکم ولاړ (په حق باندې) لپاره د الله (اوسئ تاسې !) شاهدان په قسط (عدل او انصاف) سره.

تفسير: ﴿قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ﴾ کې د حقوق الله او په ﴿شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ﴾ کې د حقوق العباد په لوري اشاره ده، همداسې يو آيت په (۵) جزء د «النساء» سورت په (۱۳۵) آيت (۲۰) رکوع کې تېر شوی دی، چې د دې دواړو په مينځ کې فقط دومره فرق شته، چې هلته «بالقسط» يې له «الله» څخه مقدم کړی دی، او ښايي چې وجه يې دا وي چې هلته د «حقوق العباد» ذکر له اوله جريان درلود (لرلو)، او دلته له پخوا راهيسې د «حقوق الله» تأکيد جريان لري، نو په دې ملاحظه هلته د «بالقسط» او دلته د «الله» تقديم مناسب شو، برسېره پر دې دلته په لحاق کې له مبغوض دښمن سره د معاملې کولو ذکر دی، چې له هغه سره د «قسط» تذکر ضرور دی، او هلته د سورت «النساء» د آيت په لحاق کې د محبوبو شيانو ذکر دی، نو ځکه هلته له ګردو څخه محبوب د پاک الله د ذکر تذکر شوی دی.

وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا ؕ

او باعث دې نکړي تاسې دښمني د يوه قوم په دې باندې چې عدل انصاف به ونه کړئ تاسې.

تفسير: د «عدل» معنی دا ده چې له بل چا سره بې له افراطه او تفريطه همغسې معامله وکړئ چې هغه واقعي د هغې مستحق وي، د عدل او د انصاف تله ښايي داسې سمه او برابره وي چې نه ډېره زياته دوستي، او نه ډېره سخته دښمني وکولی شي، چې د هغې يوه پله درنه کړي.

اِعْدِلُوْا ۫ هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ۫

عدل (انصاف) وکړئ تاسې !، همدا (عدل) ډېر نږدې دی تقوی (پرهېزګارۍ) ته.

تفسير: «تقوی» د هغه معنوي کيفيت نوم دی، چې د هغو شيانو له اجتناب او ځان ژغورنې (ساتنې) څخه حاصلېږي، چې شرعاً مهلک يا په کومه درجه سره مضر وي، او يو خاص نوراني کيفيت دی چې د انسان په زړه کې راسخيږي، د «تقوی» د تحصيل نږدې او لرې اسباب ډېر دي، ګرد حسنه اعمال او د خير خصال «د تقوی» له اسبابو او معداتو څخه شمېرلی شي، ليکن معلومېږي چې «عدل» او «قسط» يعنې له دوسته او دښمنه سره يو شان معامله کول، او د حق په معامله کې د محبت او عداوت د جذباتو تر تأثير لاندې نه راتلل، د «تقوی» د حصول د خورا مؤثرو او د ډېرو قريبو اسبابو څخه دي، نو يې ځکه ﴿اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى﴾ وفرمايل، يعنې دا عدل چې حکم يې ورکړ شو «تقوی» ته ډېر نږدې دی، چې د هغه له ممارست او کولو څخه وروسته د «تقوی» کيفيت ډېر ژر حاصلېږي.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۸﴾

او ووېرېږئ تاسې له الله (نو ظلم مه کوئ !) بېشکه چې الله ښه خبردار دی په هغو اعمالو چې کوئ يې تاسې.

تفسير: يعنې داسې عدل او انصاف وکړئ ! چې مخه يې هيڅ ډول دوستي يا دښمني نشي نيولی، او د هغه له غوره کولو څخه انسان په آسانۍ سره متقي کېدی شي، د «تقوی» د حصول يواځينی لار د الله تعالی وېره ده، او د هغه له انتقام څخه خوف دی، او دا خوف د ﴿اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ﴾ په مضمون کې له څو څو ځلې تفکر او تدبر کولو څخه پيدا کيږي.

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۹﴾

وعده کړېده الله له هغو کسانو سره چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه د دې چې مقرر دی) دوی ته مغفرت او اجر ډېر لوی (په جنت کې).

تفسير: يعني نه يوائې دا چې د هغوی هغه قصور به وربخښو چې د بشريت په اقتضاء له هغوی څخه صادريږي، بلکه عظيم الشأن اجر او ثواب به هم دوی ته عطا فرمايو.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١٠﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ هَمَّ قَوْمٌ أَنْ يَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾

او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو يې کړی دی آياتو ځمونږ ته؛ همدغه کسان دي صاحبان (ملګري د اور) د دوزخ. ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو !) ياد کړئ تاسې احسان د الله (چې) پر تاسې (دی) کله چې قصد وکړ يوه قوم د دې چې راوغځوي دوی تاسې ته لاسونه خپل (او تاسې مړه کړي) نو منع يې کړل لاسونه د دوی له تاسې څخه، او ووېرېږئ تاسې (په هېرولو د نعمتونو کې) له الله څخه، او خاص په الله پس خامخا توکل دې وکړي مؤمنان (چې الله کافي دی په رسولو د خير او لرې کولو د شر کې).

وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ۖ وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي مَعَكُمْ ۖ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۚ فَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَٰلِكَ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ﴿١٢﴾

او خامخا په تحقيق اخيستې ده الله وعده محکمه له بني اسرائيلو، او ولېږل (مقرر کړل) مونږ له دوی نه دوولس (تنه) مشران (ضامنان د قوم د دوی په وفا د وعدې سره)، او وفرمايل الله (بني اسرائيلو ته) بېشکه زه له تاسې سره يم (په معاونت او نصرت سره) (او ويې فرمايل: قسم دی) خامخا که قائم کړئ تاسې (سم اداء کړئ سره له ټولو حقوقو) لمونځ او ورکړئ تاسې زکات (د اموالو خپلو مستحقانو ته)، او ايمان راوړئ تاسې په رسولانو زما، او مدد (او تعظيم) وکړئ تاسې د دوی، او قرض ورکړئ تاسې الله ته قرض نېک (ښه ورکړه بې منته، بې احسانه، بې ضرره د زړه له اخلاصه نو)، خامخا لرې به کړم زه له تاسې څخه ګناهونه ستاسې، او خامخا داخل به کړم زه تاسې هسې جنتونو ته چې بهيږي له لاندې (د ونو او ماڼيو د) هغو ويالې، نو هر څوک چې کافر شو وروسته له دې (وعدې) له تاسې نه؛ نو په تحقيق ورکه کړې يې ده سمه صافه لاره (د حق).

تفسير: ﴿إِنِّي مَعَكُمْ﴾ خطاب همغو د بني اسرائيلو دولسو سردارانو ته دی، يعنې تاسې خپل فرض اداء کړئ !، زما حمايت او امداد له تاسې سره دی، يا ګردو بني اسرائيلو ته دی : چې زه له تاسې سره يم، يعنې هيڅ وخت ما له خپل ځانه لرې مه ګڼئ ! هر هغه معامله چې په هر ځای او په هر وخت کې يې په پټه يا په ښکاره تاسې وکړئ زه يې ګورم، او اورم يې، نو ځکه هر شی چې کوئ، ښايي چې په پوهه او هوښياری سره يې وکړئ !.

﴿وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ﴾ «او ايمان راوړئ، يقين وکړئ تاسې په رسولانو ځما، او مدد او تعظيم وکړئ تاسې د دوی»، يعنې هر هغه رسول چې له موسی عليه السلام څخه وروسته راځي، د هغوی د ټولو تصديق او د زړه له کومې د دوی تعظيم وکړئ ! او د حق د دښمنانو په مقابل کې له هغوی سره په خپلو ځانونو او مالونو دواړو سره معاونت او مرستې (مدد) وکړئ.

﴿وَأَقۡرَضۡتُمُ ٱللَّهَ﴾ يعنې ورکړه کوئ ! په لاره د الله لپاره د ترقۍ د دين، له قرض ورکولو څخه مراد دا دی: چې د دين او د الله د رسولانو په حمايت او ساتنه کې خپل مالونه صرف کړئ ! همغسې چې قرض ورکوونکي خپلې روپۍ په دې مقصد بل ته پور (قرض) ورکوي، چې د ده روپۍ به بېرته ور رسيږي، او قرض اخيستونکی د هغه ادا کول په خپله ذمه لازمه ګرځوي، همدا شان د همغه الله تعالی له ورکړې شوي مال ځنې هر شی چې دلته د هغه په لاره کې صرف کړ شي، هغه به له سره نه لړ او نه ورک کيږي، حق تعالی د کومې مجبورۍ له امله (وجهې) نه بلکه محض په خپل فضل او رحمت سره يې دا په خپله ذمه لازمه کړېده، چې هغه شی به سره له ډېرې ګټې در رسوي.

﴿قَرۡضًا حَسَنٗا﴾ «پور (قرض) نېک: ښه ورکړه، بې منته، بې احسانه، او بې ضرره د زړه له اخلاصه»، له نېک ځنې مراد دا دی چې په اخلاص يې ورکوئ ! او له محبوبو او له مرغوبو شيانو او د حلالو، پاکو، صافو، او ښو مالونو څخه يې ورکړئ ! (او ځواب د قسم دا دی):

﴿لَّأُكَفِّرَنَّ عَنكُمۡ سَيِّـَٔاتِكُمۡ﴾ «نو خامخا به لرې کړم له تاسې څخه ګناهونه ستاسې» يعنې کله چې نيکۍ ډېرې شي؛ بدۍ بدلوي او محوه کوي يې، کله چې انسان د الله تعالی د عهد په پوره کولو کې زيار باسي (محنت کوي)، او کوښښ کوي نو حق تعالی ترې نورې کمزورۍ او نيمګړتياوې لرې کوي، او د خپلې خوښې او قرب په مقام کې ورته ځای ورکوي.

﴿فَمَن كَفَرَ﴾ الآيه ـ يعنې له هسې صاف او پاخه عهد او پيمان څخه وروسته هم که څوک د الله تعالی په عهد وفا ونه کړي، او غدر او خيانت ته ملا وتړي، نو وپوهېږئ چې ده د کاميابۍ او د نجات سمه لار ورکه کړې ده.

فَبِمَا نَقۡضِهِم مِّيثَٰقَهُمۡ لَعَنَّٰهُمۡ وَجَعَلۡنَا قُلُوبَهُمۡ قَٰسِيَةٗۖ يُحَرِّفُونَ ٱلۡكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ وَنَسُواْ حَظّٗا مِّمَّا ذُكِّرُواْ بِهِۦۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٖ مِّنۡهُمۡ إِلَّا قَلِيلٗا مِّنۡهُمۡۖ فَٱعۡفُ عَنۡهُمۡ وَٱصۡفَحۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ﴿١٣﴾

نو په سبب د ماتولو د دوی د کلکې وعدې خپلې لعنت وکړ مونږ پر دوی او ګرځولي دي مونږ زړونه د دوی سخت (چې هيڅ پند نه آخلي) چې اړوي (لرې کوي) دوی کلمې (د تورات مخصوصا محمدي نعت) له ځايونو خپلو (او په خپلې ناپاکې مدعا يې اړوي)، او هېره کړې ده دوی (غټه) برخه اخيستل له هغه شي چې پند ورکړې شوی وو دوی ته په هغه سره (په تورات کې چې هغه متابعت د محمد وو)، او همېشه به يې ته (ای محمده !) چې خبرېږې په کوم خيانت له دې (يهودانو نه) مګر لږ (کسان) له دوی نه، نو عفوه وکړه (ای محمده !) دوی ته، او مخ وګرځوه (له دوی نه)، بېشکه چې الله خوښوي احسان کوونکي.

تفسير: د «لعن» معنی (طرد، ابعاد، شړل او لرې کول) ده، يعنې د عهد ماتولو او د غدارۍ له سببه مونږ دوی له خپل رحمت څخه لرې وغورځول (يا مسخه مو کړل يا جزيه مو پرې کېښوده)، او د دوی زړونه مو سخت کړل، په ﴿فَبِمَا نَقۡضِهِم مِّيثَٰقَهُمۡ﴾ کې ظاهر وفرمايل چې د دوی د ملعونيت او زړه سخت کېدلو سبب هغه عهد ماتول او بې وفايي ده، چې د دوی خپل فعل دی، اما پر اسبابو باندې د مسبباتو مرتبول څرنګه چې د الله تعالی کار وو، نو په دې لحاظ ﴿وَجَعَلۡنَا قُلُوبَهُمۡ قَٰسِيَةٗ﴾ نسبت د الله جل جلاله په لوري وکړ شو.

﴿يُحَرِّفُونَ ٱلۡكَلِمَ عَن مَّوَاضِعِهِۦ﴾ «اړوي دوی کلام د تورات، مخصوصا محمدي نعت له ځايونو خپلو څخه په خپلې ناپاکې مدعا» يعنې د الله تعالی په کلام کې تحريف کوي، کله د هغه په الفاظو کې، کله د هغه په معانيو کې، کله په تلاوت کې، د تحريف دغه ګرد اقسام په قرآنکريم او د احاديثو په کتابونو کې ذکر شوي دي، چې پر هغو باندې لږ څه اعتراف د نن ورځې اروپايي نصاراوو هم کړی دی.

﴿وَنَسُوا۟ حَظًّا﴾ يعنې لازم خو دا وو چې اهل کتاب د دغو آسماني کتابونو له قيمتدارو پندونو څنې فائدې اخيستلې واى، مثلاً د نبي آخر الزمان صلى الله عليه وسلم د راتګ او د نورو ديني مهماتو په نسبت د هغو په کتابونو کې ارشادات موجود وو، مګر دوى په خپلو شرارتونو او غفلتونو اخته او دا ګرد شيان يې له ياده وويستل، بلکه د پندونو هغه ضروري برخې يې هم ورکې کړې، او اوس هم هغه پندونه او مفيدې خبرې چې د خاتم النبيين صلى الله عليه وسلم له خولې هغوى ته کيږي؛ د هغو هيڅ يو اثر نه قبلوي.

﴿وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَىٰ خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ﴾ يعنې د دوى د دغابازۍ او خيانت کارۍ سلسله تر نن و رځې پورې جاري ده، او وروسته له دې نه به هم جاري وي، نو څکه تل تاسې د دوى پر يوې نه يوې دغابازۍ، مکر، فريب، او خيانت باندې خبريږئ، (په خائنة کې «ة» لپاره د مبالغې ده لکه علامة او نسابة کې).

﴿إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ﴾ مګر لږ کسان له دوى نه چې هغوي خيانت نه دى کړى او نه يې کوي، لکه عبد الله بن سلام او نور چې په اسلام کې داخل شوي دي، رضي الله تعالى عنهم.

﴿فَاعْفُ عَنْهُمْ﴾ الآية ـ قتاده او نورو «رحمهم الله» ويلي دي: چې دا آيت په ﴿قَاتِلُوا۟ ٱلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَلَا بِٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ﴾ سره منسوخ شوى دى، مګر دېته هيڅ حاجت نشته، څکه د قتال له حکمه دا نه لازميږي؛ چې په هيڅ وخت او هيڅ موقع کې دې هم د داسې قوم په مقابله کې له عفوې او اغماض او تأليف القلوب او تېرېدلو څنې کار وانخيستل شي، (بيضاوي وايي چې: عفو او صفح مشروط دي په دې شرط سره چې دوى توبه وباسي او ايمان راوړي، يا صلح وکړي او جزيه ومني، نو په دې تقدير سره نسخ نشته، او که عفو او صفح دواړه مطلق وي، نو دا حکم به د سيف په آيت سره منسوخ وي).

وَمِنَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّا نَصَٰرَىٰٓ أَخَذْنَا مِيثَٰقَهُمْ فَنَسُوا۟ حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا۟ بِهِۦ فَأَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ ٱلْعَدَاوَةَ وَٱلْبَغْضَآءَ إِلَىٰ يَوْمِ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ ٱللَّهُ بِمَا كَانُوا۟ يَصْنَعُونَ ﴿١٤﴾

او څينو له هغو کسانو څخه چې وايي دوي: بېشکه مونږ نصرانيان يو؛ اخيستى وو مونږ محکم عهد د دوى، نو هېره کړه دوى (غټه) برخه آخيستل له هغه شي چې پند ورکړى شوى وو دوى ته په هغه سره، نو واچاوه مونږ په منځ د دوى کې عداوت (دښمني) او بغض (کينه) تر ورځې د قيامته پورې، او ژر به خبر ورکړي دوى ته الله په هغو کارونو چې وو دوى چې کول به يې.

**تفسير:** يعنې (و أخذنا من النصارى ميثاقهم كما أخذنا ممن قبلهم) د نصارى د کلمې مأخذ يا «نصر» دى، چې معنى يې مدد کول دي، يا د «ناصره» په لوري منسوب دى چې په شام کې د هغې قريې نوم دى، چې هلته مسيح عليه السلام هستوګنه درلوده (لرله)، نو څکه ورته ناصري مسيح عليه السلام هم وايي، هغه کسان چې خپل ځانونه يې «نصارى» بلل، ګواکې دوى د دې خبرې مدعيان وو، «چې مونږ د الله تعالى د حق دين او د انبياوو عليهم السلام رښتيني حاميان او ناصران يو، او د ناصري مسيح له متابعانو څنې يو»، د ژبې د دعوى او ظاهري افتخار سره سره هغه لاره چې دوى د دين په چارو کې غوره کړې وه په آينده کې به ذکر شي.

﴿أَخَذْنَا مِيثَٰقَهُمْ﴾ ـ «اخيستى وو مونږ محکم عهد له نصرانيانو نه هم په انجيل کې چې هغه د محمد صلى الله عليه وسلم متابعت وو» يعنې د يهودانو په شان له دوى څنې هم کلک عهد اخيستلى شوى، ليکن دوى هم په عهد ماتولو او بې وفايۍ کې له خپلو پخوانيو څخه هيڅ کم نه وو، دوى هم له هغو ښو پندونو څنې هيڅ يوه فائده وانخيسته، چې پر هغو باندې ابدي فلاح او نجات مرتب وو، بلکه په «انجيل ـ بايبل» کې يې د نصائحو هغه برخه بيخي پرېښوده،

چې في الحقيقت د مذهب مغز وه (او هم دمحمد صلى الله عليه وآله وصحبه وسلم د متابعت په نسبت يې د هغه احکام ونه منل).

﴿فَأَغْرَيْنَا﴾ الآية ـ «نو واچاوه مونږ په منځ د دوی کې عداوت، دښمني، بغض او کينه» يعني د نصرانيانو په منځ کې يا د يهودانو او نصاراوو په منځ کې به تل تر تله جګړې او عداوتونه قائميږي، او د آسماني تعليماتو له ضايع کېدلو او هېرولو څخې کومه نتيجه چې پېښېدونکې وه؛ هغه پېښه شوه.

﴿وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللَّهُ﴾ الآية ـ يعني په آخرت کې به په ښه ډول سره او په دنيا کې به هم د ځينو واقعاتو په وسيله هغوی د دوی د بدو کارونو نتيجه ور معلومه شي.

يَٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ كَثِيرٗا مِّمَّا كُنتُمۡ تُخۡفُونَ مِنَ ٱلۡكِتَٰبِ وَيَعۡفُواْ عَن كَثِيرٖۚ

ای اهل د کتابو ! په تحقيق درغلی دی تاسې ته رسول زمونږ (محمد) چې بيانوي (ښکاروي) تاسې ته ډېر له هغو شيانو چې وئ تاسې چې پټول به مو له کتابه (تورات او انجيل نه لکه د رجم آيت او محمدي نعت) او عفو کوي (تېرېږي) له ډېرو شيانو،

تفسير: دا ګردو يهودانو او نصرانيانو ته خطاب دی، چې هغه نبي آخر الزمان صلى الله عليه وسلم تشريف راووړ، چې د ده د راتګ بشارت ستاسې په کتابونو کې سره له دومره تحريفاتو لا هم څه نه څه په يوه نه يوه عنوان شته، او پاک الله د دې رسول صلى الله عليه وسلم ته خپل پاک کلام ورليږلی دی، او هغه حقايق يې تکميل کړل چې له مسيح عليه السلام څخه ناتمامه پاتې وو، د «تورات» او «انجيل» هغه خبرې چې تاسې پټولې او تغيير او تبديل مو پکې کولو، له هغو څخه ګردې ضرورې خبرې هم دې رسول آخر الزمان صلى الله عليه وسلم تاسې ته ظاهرې کړې دي، او له هغو خبرو څخې تېر شوی دی چې اوس هغو ته دومره ضرورت نه دی پاتې، او يا په اظهار کې يې څه مصلحت نه وو.

قَدۡ جَآءَكُم مِّنَ ٱللَّهِ نُورٞ وَكِتَٰبٞ مُّبِينٞ ١٥ يَهۡدِي بِهِ ٱللَّهُ مَنِ ٱتَّبَعَ رِضۡوَٰنَهُۥ سُبُلَ ٱلسَّلَٰمِ وَيُخۡرِجُهُم مِّنَ ٱلظُّلُمَٰتِ إِلَى ٱلنُّورِ بِإِذۡنِهِۦ وَيَهۡدِيهِمۡ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ١٦

په تحقيق درغلی دی تاسې ته له (طرفه د) الله څخې نور (رڼا يعني محمد) او کتاب مبين (روښان بيانوونکی قرآن). چې هدايت کوي په (هر يوه) له دې سره الله هغه چا ته چې تابع وي د رضا د ده لارې د سلامتی ته، او باسي دوی له تيارو (د کفر، شک، جهل) څخه نور (رڼا د ايمان، يقين او علم) ته په اذن (حکم، اراده، توفيق) خپل، او هدايت (ښوونه) کوي دوی ته (په طرف د) لارې سمې صافې (د توحيد).

تفسير: ای محمده ! «صلى الله عليه وسلم» ووايه دوی ته چې: د الله تعالى په ډېرې زوروړې رڼا سره ګرد جهان روڼ شوی دی، که د ابدي نجات پر سمه لاره باندې تلل غواړئ نو په دې رڼا کې د الله تعالى د رضا او خوښې حاصلولو پسې شئ ! چې د سلامتی ګردې لارې به سمې او خلاصې وموميء، او له تيارو څخې به ووځيء، په دغه رڼا کې به بې له ربړه (مصيبته) او تکليفه تللی شئ، او د هغه پاک الله د رضا او خوښې چې تابع شوي يئ د هغه په لارښوونې او لاس نيونې سره به ﴿صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ﴾ بې تکليفه طی کولی شئ.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ

خامخا په تحقيق كافران شوي دي هغه كسان چې وايي دوی: بېشكه چې الله همدا مسيح ځوی د مريمې دی.

تفسير: يعنې دوی وايي چې: الله بې له مسيح عليه السلام څخه كوم بل شی نه دی (معاذ الله)، وايي چې په نصرانيانو كې دا د «يعقوبيه وو» د فرقې عقيده ده چې د دوی په نزد د مسيح عليه السلام په قالب كې الله تعالی حُلول كړی دی (معاذ الله).

قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ؕ

ووايه (اې محمده !دغو نصرانيانو ته) نو څوك به مالك شي (د منعې) له الله څخنې د يوه شي؟ كه اراده وفرمايي (الله) ددې چې هلاك كړي مسيح ځوی د مريمې او مور د ده او هومره خلق چې په ځمكه كې دي ګرد سره ټول (بلكه هيڅوك يې نشي كولی).

تفسير: يعنې فرض كړئ كه قادر او قهار الله جل جلاله داسې اراده وفرمايي چې مسيح عليه السلام او بي بي مريم او ټول وړاندني او وروستني د ځمكې اوسيدونكي سره يو ځای كړي، او په يوه شېبه (يو ساعت) كې ګرد (ټول) سره مړه كړي، نو همدا تاسې وښيئ ! چې څوك به يې د ارادې مخه ونيولی شي؟

يعنې كه له ازله تر ابده پورې ګرد انسانان هم سره فرضا ټول كړل شي، او الله جل جلاله په يوه آن كې د دوی د هلاكولو اراده وفرمايي؛ نو د دوی ګرد (ټول) اجتماعي قوت هم د الله تعالی د ارادې مخه د لږ وخت لپاره هم نشي ځنډولی (ملتوي كولی)، ځكه چې د مخلوقاتو محدود او وركړ شوی قوت او قدرت د الله تعالی د قدرت په مقابل كې داسې پوره عاجز او لاشی دی؛ چې پر هغه همدا خلق اعتراف كوي، چې د دوی په رد كې دا خطاب كيږي، بلكه په خپله مسيح ابن مريم عليه السلام هم چې هغه خلق يې الله بولي؛ هم په دې باندې معترف دی لكه چې د «مرقس» په «انجيل» كې د مسيح عليه السلام دا مقوله موجوده ده، نو كله چې مسيح عليه السلام چې تاسې يې الله بولئ، او د هغه ماجده والده صديقه بي بي مريمه چې ستاسې په زعم د الله مور ده، كه دا دواړه هم سره له ګردو (ټولو) هغو كسانو چې د ځمكې په سر هستوګنه لري، يو ځاي شي؛ د الله تعالی د مشيئت او ارادې په مقابل كې عاجز او ناتوان دي، نو تاسې پخپله فكر او اټكل وكړئ ! چې پخپله د هغه يا د هغه د والدې يا د بل كوم مخلوق په نسبت به د الوهيت دعوی كول څومره ګستاخي او سپين سترګي توب وي؟

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ

او خاص الله لره دی ملك (سلطنت) د آسمانونو او (سلطنت) د ځمكې او (سلطنت) د هغو شيانو چې په مينځ د دوی كې دي، پيدا كوي (الله) هغه چې اراده يې وفرمايي د (پيدا كولو يې).

تفسير: يعنې هر څه يې چې اراده وي او په هر ډول چې اراده وفرمايي؛ هغه كوي، مثلا مسيح عليه السلام يې بې پلاره او حواء رضي الله تعالی عنها يې بې له موره او آدم عليه السلام يې بې له موره او بې له پلاره پيدا كړی دی.

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٧﴾

او الله پر هر څيز باندې ښه قادر دی (نو بې له پلاره بې له موره او بې له والدينو يې هم پيدا کوي).

تفسير: د هيچا زور د الله جل جلاله په مقابل کې نه چليږي.

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ؕ

او ويل يهودانو او نصرانيانو چې مونږ ځامن د الله يو (په قرب او منزلت کې) او دوستان د ده يو، ووايه (ای محمده ! دې کتابيانو ته): نو ولې په عذابوي (الله) تاسې په سبب د ګناهونو ستاسې؟.

تفسير: څرنګه چې د حقيقت له مخې د کوم مخلوق «ابن الله» کېدل بالکل محال او بديهي البطلان دي، او د ﴿يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ﴾ (۶ جزء د المائده سورت (۵۴) آيت (۸) رکوع) د مضمون له مخې الله تعالى محبوب ګرځېدل ممکن وو؛ نو ځکه په دې جمله کې اول د «محبوبيت» د دعوى ترديد وشو، يعنې هغه قوم چې د ښکاره بغاوتونو او ډېرو شديدو ګناهونو له سببه دلته په څو قسمو رسوايېګانو او عذابونو کې نيولى شوى دی، او په آخرت کې هم عقلا او نقلا د حبس دوام د سزا استحقاق لري، آيا د داسې باغي او عاصي قوم په نسبت د يوې لمحې لپاره هم کوم ذي شعور داسې خيال کولى شي چې: دا به د الله تعالى محبوب او مکرم وي؟ پاک الله له هيچا سره نسبي علاقه نه لري، د ده مهرباني او محبت يوازې له اطاعت او حسن عمل څخه حاصلېدی شي.

بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ

بلکه تاسې (هم) يو بشر (بنيادم) يئ د هغو مخلوقاتو له جملې نه چې الله پيدا کړي دي.

يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

مغفرت کوي (الله) هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د مغفرت يې) او عذابوي هغه څوک چې اراده وفرمايي (د عذاب يې).

تفسير: ځکه چې همغه ته دغه خبره ښه معلومه ده چې څوک دمغفرت وړ (لايق) او کوم يوه ته سزا ورکړه شي؟

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۫ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿١٨﴾

او خاص الله لره دی ملک (سلطنت) د آسمانونو او (سلطنت) د ځمکې او (سلطنت) د هغو شيانو چې په منځ د دوی کې دي، او خاص هم ده ته دي بيا ورتلل (د ټولو، نو وربه کړي هر چا لره جزا د عمل د ده).

تفسير: نو د هر چا د معافولو اراده چې دی په خپل فضل او رحمت او حکمت سره وفرمايي، يا سم له عدل او انصاف سره د چا د سزا ورکولو اراده ولري، په دې کې څوک له ده سره مزاحم کېدی نه شي، نه کوم مجرم ته د دې خبرې توان او قدرت شته، چې د ده له سلطنت او ځمکې او آسمان څخه د باندې ووځي، او نه دا چې په آخرت کې چېرې وتښتي.

يٰٓأَهۡلَ ٱلۡكِتَٰبِ قَدۡ جَآءَكُمۡ رَسُولُنَا يُبَيِّنُ لَكُمۡ عَلَىٰ فَتۡرَةٖ مِّنَ ٱلرُّسُلِ أَن تَقُولُواْ مَا جَآءَنَا مِنۢ بَشِيرٖ وَلَا نَذِيرٖۖ فَقَدۡ جَآءَكُم بَشِيرٞ وَنَذِيرٞۗ

اې اهل د كتابو ! په تحقيق درغلى دى تاسې ته رسول ځمونږ (محمد) بيانوي تاسې ته (شرعي أحكام) په (وخت د) انقطاع د رسولانو (او معطل كېدو د وحيې) كې چې بيا چېرې ونه وايئ تاسې (په قيامت كې) چې: نه وو راغلى مونږ ته هيڅ زېرى كوونكى (په نعيم سره) او نه ويروونكى (په جحيم سره) نو په تحقيق راغلى تاسې ته زېرى كوونكى او ويروونكى،

تفسير: ﴿فَقَدۡ جَآءَكُم بَشِيرٞ وَنَذِيرٞ﴾ «نو په تحقيق راغلى تاسې ته زېرى وركوونكى او ويروونكى» له مسيح عليه السلام نه نږدې (۶۰۰) كاله وروسته د انبياوو د راتګ سلسله منقطع شوې وه، او ګرده دنيا تر «ما شاء الله» پورې د جهل او غفلت هوسونو او اوهامو په تيارو كې لوېدلې وه، د هدايت ډيوه مړه شوې وه، د ظلم، عدوان، او الحاد تكې تورې وربځې پر ګرد (آفاق) خورې شوې وې، په دې وخت كې د ګرد جهان د اصلاح لپاره پاك الله جل جلاله له ګردو ځنې لوى «هادي»، «بشير» او «نذير» راولېږه، چې جاهلانو ته د دارينو د فلاح لارې ور وښيي، او غافلان په خپل تخويف او انذار سره ويښ كړي، او تيټ همتان د بشاراتو په آورولو سره په شوق راولي، په دې شان په ګردو مخلوقاتو كې د الله تعالى حجت تمام شو، كه څوك يې ومني، او كه يې ونه مني.

وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ قَدِيرٞ ١٩

او الله پر هر شي ښه قادر دى (چې له هغې جملې نه د نبيانو عليهم السلام د سلسلې د قطع كېدو څخه وروسته د محمد صلى الله عليه وسلم ارسال دى).

تفسير: يعنې كه تاسې د دې رسول خبره وا نه ورئ؛ نو الله تعالى قدير دى چې بل يو قوم ستاسې په ځاى ودروي، چې د الله تعالى پيغام به په پوره ډول سره ومني، او د الله تعالى له رسول سره پوره ملګرتيا وكړي، د الله تعالى كار په تاسې باندې هيڅ نه دى موقوف.

وَإِذۡ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوۡمِهِۦ يَٰقَوۡمِ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَةَ ٱللَّهِ عَلَيۡكُمۡ إِذۡ جَعَلَ فِيكُمۡ أَنۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكٗا وَءَاتَىٰكُم مَّا لَمۡ يُؤۡتِ أَحَدٗا مِّنَ ٱلۡعَٰلَمِينَ ٢٠

او (ياد كړه اې محمده !) هغه وخت چې وويل موسى قوم خپل ته اې قومه (ځما) ياد كړئ تاسې نعمت (احسان) د الله پر تاسې باندې كله چې وګرځول (الله) په تاسې كې (ډېر) انبياء او وګرځول (الله) په تاسې كې (يا له تاسې نه) پاچايان، او در يې كړ تاسې ته هغه چې نه يې وو وركړى هيڅ يوه ته له خلقو (د زماني ستاسې).

تفسير: ﴿إِذۡ جَعَلَ فِيكُمۡ أَنۢبِيَآءَ﴾ «كله چې وګرځول الله جل جلاله په تاسې كې ډېر انبياء يعنې ستاسې د أعلى جد ابراهيم عليه السلام له زمانې راهيسې تر نن ورځې پورې څومره ډېر انبياء عليهم السلام ستاسې په منځ كې پيدا شوي دي، مثلا اسماعيل، اسحق، يعقوب، يوسف، او پخپله موسى او هارون عليهم الصلوات والتسليمات، او وروسته له دوى نه هم دا سلسله تر يوې اوږدې زمانې پورې قائمه پاتې وه (چې تاسې ته به دوى ارشادات كول او پرې مشرف او معزز كېدلى به).

﴿وَجَعَلَكُمْ مُّلُوكًا﴾ او وګرځول (الله په) تاسې (کې یا له تاسې نه) پاچایان یعنې د (فرعون) له خورا ذلت، سپکتوب، او غلامۍ څخه مو آزادي درکړه، او د فرعونیانو په اموالو او املاکو مو مسلط ورګرځولئ، او له دې نه وړاندې ستاسې له منځه مویوسف علیه السلام ته څرنګه د (مصر) په خزائنو او سلطنت تسلط عطا فرمایلی وو، بیا وروسته مو هم سلیمان علیه السلام او نور انبیاء علیهم السلام او پاچایان پیدا کړل، ګواکې د دین او دنیا له دواړو لویو نعمتونو سره مو تاسې ته سرلوړي درکړه، څکه چې په دیني مناصبو کې خورا لوی منصب نبوت، او په دنیا کې آخري اقبال آزادي او پاچاهي ده، چې دا دواړه شیان الله (جل وعلا شأنه) تاسې ته ای بني اسرائیلو در عطاء او مرحمت فرمایلي دي.

﴿وَاٰتٰىكُمْ﴾ الآیة - «او در یې کړ تاسې ته ای بني اسرائیلو هغه شیان چې ورکړي یې نه وو هیڅ یوه ته له خلقو د زماني ستاسې».

د﴿اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ﴾ حمل پر عمومو باندې به څکه صحیح نه وي؛ چې څمونږ د محمدیه امت په نسبت په خپله په قرآن کریم کې تصریح ده: ﴿كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ﴾ (۴ جزء د آل عمران سورت ۱۱۰ آیت ۱۲ رکوع) ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ﴾ (۲ جزء د البقرة سورت ۱۴۳ آیت ۱۷ رکوع).

يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِيْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰٓى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۲۱﴾

ای قومه (څما) ننوځئ تاسې څمکې پاکې کړی شوې (د بیت المقدس، یا د شام، یاد ایلیا، یا د اریحا) ته، هغه څمکه چې مقرر کړېده الله تاسې ته (په لوح محفوظ کې په شرط د ایمان ستاسې) او بېرته مه څئ تاسې په شاګانو خپلو (له جهاده) نو وبه ګرځئ تاسې زیانکاران (په سعي خپلې).

تفسیر: یعنې الله تعالی پخوا له دې نه له ابراهیم علیه السلام سره وعده فرمایلې وه، چې ستا اولادې ته به دا ملک ورکوم، او هغه وعده هرو مرو پوره کېدونکې ده، هغه خلق به نېکمرغه او بختور وي؛ چې د هغو په لاسو او وسیله دغه پوره شي.

«نو ننوځئ ! دې پاکې څمکې ته ! او شا مه ګرځوئ ! له جهاده که نه نو سخت نقصان به وګالئ، یعنې په جهاد في سبیل الله کې بې زړه توب، ویره، او بې همتي مه کوئ ! او د مریتوب (غلامۍ) د ژوندون په لور منډې مه وهئ ! ».

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ ۖ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ فَاِنْ يَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ ﴿۲۲﴾

وویل دغو (بني اسرائیلو) ای موسی ! ببشکه په دې څمکه کې یو قوم دی ډېر زورور (چې مونږ یې د مقابلې طاقت نه لرو - یعنې ډېر قوي هیکل، مېړنی، پیاوړی او لـه رعبه ډك او ویـروونکـی دی) او ببشکه مونږ له سره نه ننوځو په دغې څمکې کې تر هغې پورې چې ووځي دوی له دې (څمکې نه) نو کـه ووځي دوی له دې ځایه (بې له جنګه) نو ببشکه مونږ ننوتونکي یو.

تفسیر: یعنې د مقابلې همت په مونږ کې نشته، هو ! بې د لاسونو او پښو د خوځولو څخه پخه او تیاره خورو، تاسې د خپلې معجزې په زور دوی وباسئ !.

قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوْا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَاِذَا دَخَلْتُمُوْهُ فَاِنَّكُمْ غٰلِبُوْنَ ۚ۵

وويل دوو سړيو له هغو كسانو چې وېرېدل (له الله نه) چې انعام (احسان) كړى وو الله په دوى دواړو چې ورننوځئ پر دوى (حمله كوونكي) په دروازو كې !، نو كله چې ورننوتئ تاسې دروازې ته نو بېشكه همدا تاسې به غالبان يئ (پر هغوى ځكه چې دوى بې زړه دي).

تفسير: دا دوه سړي يو «يوشع بن نون رحمه الله» او بل «كالب بن يوفنا رحمه الله» وو، چې له الله تعالى ځنې وېرېدل، نو ځكه د (عمالقه) او نورو څخه هيڅ نه وېرېدل.

وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوْا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۳﴾

او (خاص) پر الله پس توكل وكړئ تاسې ! كه يئ تاسې مؤمنان (باور لرونكي په وعده د الله).

تفسير: معلومه شوه چې د مشروعو اسبابو پرېښودل «توكل» نه دى، بلكه «توكل» دا دى چې د كوم نېك كار په كولو كې انتهايي سعي او كوښښ او آخري جد او جهد وكړ شي، بيا د هغه په مثمر او منتج كېدلو كې پاك الله ته هيله او هغه ته اسره وكړئ ! او په خپل زيار او كوښښ ونه نازېږئ ! او مه مغرورېږئ !، باقي د مشروعو اسبابو پرېښودل او تش تور اميدونه او هيلې لرل، له سره «توكل» نه، بلكه تعطل دى.

قَالُوْا يٰمُوْسٰٓى اِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَآ اَبَدًا مَّا دَامُوْا فِيْهَا فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿۲۴﴾

وويل دغو (بني اسرائيلو) اى موسى ! بېشكه چې مونږ له سره نه ننوځو دې ښار ته هيڅكله؛ څو چې وي دغه (عمالقه) پكې، پس ځه ته او (ځي دې) رب ستا نو جنګ وكړئ تاسې دواړه، بېشكه مونږ دلته ناست يو (له جنګه، په انتظار د بري ستا).

تفسير: دا د هغه قوم مقوله او وينا ده چې د ﴿نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ﴾ مدّعيان وو، مګر داسې ګستاخي او سپين سترګي كول د دوى د دائمي تمرد او پرله پسې سركښى او طغيان ځنې هيڅ لرې او مستبعد نه دى.

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ لَآ اَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِيْ وَاَخِيْ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۵﴾

وويل (موسى) اى ربه (ځما) بېشكه زه مالك نه يم (اختيار نه لرم) مګر د ځان خپل او د ورور خپل (چې هارون دى) نو بيلتون (جدايي) وكړه په منځ ځمونږ او په منځ د قوم فاسقانو كې (چې د فرمان له دائرې نه وتلي دي).

تفسير: موسى عليه السلام د دوى د دې وينا څخه خورا زيات خپه شو، او د خپګان په حالت كې يې دا پورتنى دعا وكړه، څرنګه چې له ګردو قومونو څخه د حكم نه منل او بې زړه توب او عصيان ليدل كېده، نو ځكه يې په دعاء كې پر ته له خپل ځان او له خپل ورور چې هغه هم يو معصوم نبي وو، د بل چا ذكر و نه فرمايه، يوشع «رحمه الله» او كالب «رحمه الله» هم د دوى دواړو سره طبعا راغلل.

قَالَ فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۚ يَتِيْهُوْنَ فِى الْاَرْضِ ۚ فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۶﴾

نو وفرمايل (الله ) پس بېشكه دغه (مقدسه ځمكه) حرامه كړى شوې ده پر دوى باندې (ننوتل

هغې ته) څلوېښت کاله، چې حيران سرګردان به ګرځي دوی په (همدې) ځمکه کې، نو مه خپه (او متأسف) کېږه پر قوم فاسقانو (وتونکي له فرمانه).

تفسير: يعنې د بيلتون دعاء په حسي او ظاهري ډول سره خو قبوله نشوه، هو ! معناً بيلتون وشو، چې دوی ټول سره په الهي عذاب کې اخته شول، حيران او سرګردان به سره ګرځېدل، او موسی او هارون عليه السلام د رسالت په پوره اطمينان او ډاډه زړه سره خپل د ارشاد او اصلاح پر منصب قائم پاتې شول، لکه چې په کوم کلي کې عمومي طاعون يا وبا ګډه شوي وي، او د زرهاوو ناروغانو په منځ کې دوه درې تنه پياوړې (مضبوط) او قوي القلب سړي وي، چې د دوی په دارو او درمل، معالجه، تفقد، او چاره جوړولو کې مشغول وي.

که د ﴿فَافۡرُقۡ بَيۡنَنَا﴾ معنی د «بيلتون وکړه» په ځای په «فيصله وکړه» سره شوي وي، نو دا مطلب به لا زيات واضح شوی وي، شاه صاحب ليکي چې: دا ګرده قصه يې کتابيانو ته واوروله، په دې مناسبت که تاسې هم د نبي آخر الزمان صلی الله عليه وسلم رفاقت ونه کړئ ! لکه چې ستاسې نيکه ګانو د موسی عليه السلام له رفاقته سر غړولی وو، او له جهاده څخه يې ځانونه بېرته ايستلي وو، نو دا نعمت به هم د نورو په برخه کيږي، لکه چې په برخه يې هم شو.

﴿وَاتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَأَ ابۡنَيۡ ءَادَمَ بِالۡحَقِّ﴾

او ولوله (ای محمده !) پر دغو (بني اسرائيلو يا پر قوم خپل) خبر د دواړو ځامنو د آدم (چې هابيل او قابيل وو) په حقه سره.

تفسير: يعنې د آدم عليه السلام د دوو صُلبي ځامنو (قابيل) او (هابيل) قصه او واقعي حال دوی ته واوروه ! څکه چې په دې قصه کې د هغه يوه ورور ذکر دی، چې د خپل بل ورور پر مقبوليت او تقوی يې حسد او رخه (کينه) کړېوه، او په همدې غيظ او قهر سره يې هغه په ناحقه سره وواژه، او د ناحقې وينې د عواقبو بيان پکې کړی شوی دی.

﴿إِذۡ قَرَّبَا قُرۡبَانٗا فَتُقُبِّلَ مِنۡ أَحَدِهِمَا وَلَمۡ يُتَقَبَّلۡ مِنَ الۡأٓخَرِ﴾

کله چې پيش کړه دواړو قرباني (د پسه او د غنمو د ستری الله ته)، نو قبول کړ شو (پسه) له يوه د دې دواړو نه (چې هابيل وو) او قبوله نشوه (د غنمو ستری) له بله (چې قابيل وو).

تفسير: يعنې د هغې جينۍ نکاح چې آدم عليه السلام له خپل دستور سره سم له (هابيل) سره وتړله؛ (قابيل) د هغې غوښتونکی شو، آخر د آدم عليه السلام په اشاره سره دوی دواړو د الله تعالی په دربار کې څه نذر وړاندې کړ، تر څو دغه جينۍ د همغه چا شي، چې نذر يې د پاك الله په دربار کې مقبول شي، آدم عليه السلام ته داسې يقين پيدا شوی وو، چې همدا د (هابيل) نذر به ومنل شي، لکه چې همداسې وشو، او آسماني اور ښکاره شو، او د (هابيل) نذر يې يووړ، او همدا په هغه وخت کې د «قبول عند الله» قرينه او علامه وه.

﴿قَالَ لَأَقۡتُلَنَّكَ﴾

وويل (قابيل) چې خامخا به ووژنم تا هرو مرو (خامخا) (ای هابيله !)،

تفسير: يعنې (قابيل) د دې مقبوليت له ليدلو څنې د حسد او رخې (بغض) په اور کې وسوځېد، او د دې په ځای چې د مقبوليت وسائل ځان ته غوره کړي، له ډېره غيظه او غضبه يې په خپل حقيقي ورور باندې د وژلو تور برېښ وکړ.

قَالَ إِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللَّهُ مِنَ الْمُتَّقِينَ ﴿٢٧﴾

وويل (هابيل قابيل ته) چې بېشکه همدا خبره ده چې قبلوي الله (قرباني) له پرهېزګارانو نه.

تفسير: يعني (هابيل) وويل چې: په دې کې ځما څه قصور دی، د الله تعالی په دربار کې د هيچا زور او قوت نه چلېږي، او يوائې هلته تقوی پکارېږي، ګواکې ځما هغه نذرانه چې مقبوله شوه، د هغې سبب تقوی وه، که ته هم ځان ته تقوی غوره کړې؛ نو الله تعالی له تا سره څه مخالفت نه لري.

لَئِن بَسَطتَ إِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِي مَا أَنَا بِبَاسِطٍ يَدِيَ إِلَيْكَ لِأَقْتُلَكَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٨﴾

قسم دی خامخا که دې راوغځاوه تا (ای قابيله) ما ته لاس خپل لپاره د دې چې ته ووژنې ما؛ نو نه يم زه غځوونکی د لاس خپل تاته چې ووژنم تا، بېشکه زه وېرېږم له الله چې رب (پالونکی د ګردو) عالميانو دی.

تفسير: ﴿إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ رَبَّ الْعَالَمِينَ﴾ الآية - «بېشکه چې زه وېرېږم له الله چې پروردګار د ګرد جهان دی» يعني زه له تا څخه نه وېرېږم، بلکه له الله تعالی څخه وېرېږم، او غواړم تر هغه پورې چې شرعا امکان وي، د خپل ورور په وينو خپل لاسونه ونه لړم.

أيوب سختياني (رحمه الله) به ويل: په محمدي امت کې هغه لومړنی سړی چې په دې آيت يې عمل وکړ، او خلقو ته يې خپل دا تعميل ورښکاره کړ؛ صاحب الحياء، جامع آيات القرآن ذو النورين سيدنا (عثمان بن عفان رضي الله عنه) وو «ابن کثير» - چې ده خپل سر جار (قربان) کړ، ولې په دې باندې خوښ او رضا نشو؛ چې د ده د سر په مقابل کې د يوه مسلمان ګوته هم پرې شي، رضي الله تعالی عنه.

إِنِّي أُرِيدُ أَن تَبُوءَ بِإِثْمِي وَإِثْمِكَ فَتَكُونَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ۚ وَذَٰلِكَ جَزَاءُ الظَّالِمِينَ ﴿٢٩﴾

په تحقيق زه اراده لرم د دې چې رجوع وکړې (اخته شې) ته په ګناه د (وژلو) زما او په ګناه خپلې (چې پخوا دې کړې وه) نو شې به ته له صاحبانو (ملګريو) د اور (د دوزخ)، او همدا (اور) دی جزا د ظالمانو (چې په ناحقهويني تويوي).

تفسير: يعني ځما د قتل ګناه هم له خپلو نورو ګناهو سره يو ځای کړه، ستا د ګرد عمر ګناهونه ستا پر غاړه ثابت دي، او زما د وينې ګناه به هم لا پرې زياته شي، او د مظلوميت له امله (وجې) به زما ګرد ګناهونه رامعاف شي، ابن جرير «رحمه الله» د مفسرينو اجماع نقل کړېده چې ﴿بِإِثْمِي﴾ معنی همدا ده.

باقي هغه کسان چې دا يې ليکلي دي چې: په قيامت کې به د مظلوم ګناه په ظالم باندې اچوله کيږي؛ هغه مضمون هم په يوه حيثيت سره صحيح دی، مګر د محققينو په نزد هغه د دې آيت تفسير نه دی.

اوس د (هابيل) د کلام حاصل دا دی «که تا هم داسې نيت کړی وي، چې ځما د وژلو وبال پر خپله غاړه واخلې، نو ما داسې اراده کړېده، چې د خپل ځان هيڅ مدافعه له خپله لوري ونه کړم، تر څو چې د عزيمت د ترک خبره هم پر ما باندې رانشي».

فَطَوَّعَتۡ لَهُۥ نَفۡسُهُۥ قَتۡلَ أَخِيهِ

نو ښايسته کړ دغه (قابيل) ته (امّاره) نفس د ده: وژل د ورور د ده (چې هابيل وو)

تفسير: ښايي په ابتداء کې لږ څه ويره او خوف ورپيدا شوی وي، او ورو ورو امّاره نفس به دا خيال پوخ کړی وي، او همدا کيفيت عمومًا د معاصيو په ابتداء کې پيدا کيږي.

فَقَتَلَهُۥ فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٣٠

بيا وواژه (قابيل) دغه (هابيل) نو وګرځېد (قابيل په دنيا او عُقبی کې په سبب د قتل د هابيل) له زيان کارانو.

تفسير: دنيوي خُسران خو دا دی چې داسې يو ښه ورور يې له لاسه وايست؛ چې د ده مټ او ملاتړ وو.

په حديث شريف کې راغلي دي: «ظلم» او «قطع رحم» دا دواړه داسې ګناهونه دي، چې له آخرته پخوا په همدې دنيا کې د هغو سزا ورکوله کيږي»، او اخروي خسران يې دا دی چې په دنيا کې د ظلم، قطع رحم، قتل عمد، او د بد امنۍ د دروازې له خلاصولو څخه (قابيل) د هغو ګردو ګناهونو د سزا مستوجب هم کيږي؛ چې وروسته له دې نه له دې نوعې ګناهونو څنې په دنيا کې وکړی شي، او دی به په هغو ګردو کې د باني کېدلو له وجې شريک ګاڼه شي، لکه چې په حديث شريف کې هم مصرح ده.

فَبَعَثَ ٱللَّهُ غُرَابٗا يَبۡحَثُ فِي ٱلۡأَرۡضِ لِيُرِيَهُۥ كَيۡفَ يُوَٰرِي سَوۡءَةَ أَخِيهِۚ قَالَ يَٰوَيۡلَتَىٰٓ أَعَجَزۡتُ أَنۡ أَكُونَ مِثۡلَ هَٰذَا ٱلۡغُرَابِ فَأُوَٰرِيَ سَوۡءَةَ أَخِيۖ فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلنَّٰدِمِينَ ۝٣١

نو ولېږه الله يو کارغه چې کيندل يې کول په ځمکه کې (په منبوکه او پنجو خپلو سره) لپاره د دې چې وښيي دغه (قابيل) ته چې څرنګه پټه کړي جثه د ورور خپل (هابيل)، وويل (قابيل): ای افسوسه ځما راشه دغه دې وخت دی (يعني افسوس دی ماته) آيا عاجز وم زه له دې چې کېدی په شان د دې کارغه (په پوهه کې) نو پټه کړې به مې وه جثه د ورور خپل، نو وګرځېد (قابيل په دې قتل د هابيل سره) له پښېماني کوونکو څخه.

تفسير: کله چې پخوا له دې نه بل کوم انسان نه وو مړ، نو ځکه (قابيل) پس له وژلو د (هابيل) څخه نه پوهېده چې دی د خپل ورور له مړي سره څه وکړي؟ تر څو چې يې يو کارغه وليد چې په ځمکه کې کنده کيني ـ او د بل کوم کارغه مړی پکې پټوي، نو د هغه له ليدلو څنې د (قابيل) سر ته څه عقل ورغی، او له خپل ځانه سره يې وويل چې: «ښايي زه هم د خپل ورور مړی په ځمکه کې همداسې خښ کړم»، او ده ته ارمان او افسوس هم ورغی چې: «زه په پوهه، عقل او فهم او له ورور سره په خواخوږۍ او همدردۍ کې له دې کارغه څخه هم ښکته يم»، ښايي چې حق تعالی د دې له امله د يوه ادنی ساکښ (ذي روح) په وسيله (قابيل) ته داسې تنبيه ورکړه چې هغه له خپله وحشته او حماقته لږ څه وشرميږي، او متأثر شي.

په ساکښانو (ذي روحو) کې د کارغه دا خصوصيت دی، چې د خپل ورور د مړي په ښکاره پاتې کېدلو باندې ډېر زيات شور ماشور کوي.

﴿فَأَصۡبَحَ مِنَ ٱلنَّٰدِمِينَ﴾ «نو وګرځېد قابيل په دې قتل د هابيل سره له پښېماني کوونکو څخه»، هغه افسوس او ارمان ښه نافع دی، چې له ګناه څنې معذرت، انکسار، فکر او تدارک هم وي، په دې موقع کې د (قابيل) افسوس او ارمان کول د الله تعالی په عصيان او نا فرمانۍ نه وو، بلکه په خپل هغې بدحالۍ باندې وو، چې د خپل هغه ورور (هابيل) له وژلو څخه وروسته ور رسېدلې وه.

مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًاۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِى الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ۭ وَمَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ۭ

په سبب د دې (قتل) ليکلي وو (حکم کړی وو) مونږ پر بني اسرائيلو چې بېشکه شان دا دی: هر څوک چې ووژني يو نفس بې له (عوض، بدل د) بل نفس نه (يا بې) له فساده په ځمکه کې (چې په ملک کې يې فساد کړی وي) نو ګواکې وژلي يې دي خلق ټول، او هر چا چې ژوندی کړو دغه (يو نفس چې سبب شي د ژوندون يې) نو ګواکې ژوندي کړي يې دي خلق ټول.

تفسير: په ملک کې د فساد اچولو ډېر صورتونه دي، مثلا العياذ بالله اهل حق له حق دين څخه منع کړي، يا د انبياوو عليهم السلام اهانت وکړي، يا مرتد شي، او د دې خبرې وسيله وګرځي چې نور کسان هم له خپله ځانه سره مرتد او بې دينی ته يې ترغيب کړي، (يا لاره وهل يا زنا د محصن) وقس على ذلک.

«او هر چا چې ژوندی کړ يو نفس: چې سبب شي د ژوندون يې؛ نو ګواکې ژوندي کړي يې دي خلق ټول».

لومړی د ځمکې په مخ کې لويه ګناه همدا پېښه شوه، چې (قابيل) د (هابيل) قاتل شو، او وروسته له هغه ناحقه قتل رسم شو، نو ځکه په «تورات» کې داسې فرمايل شوي دي: «که څوک يو سړی ووژني؛ ګواکې چې ګرد خلق ووژني»، يعنې د يوې ناحقې وينې له تويولوځنې نور هم پر هغه جرم زړور کيږي، نو په دې حيثيت سره هر هغه سړی چې بل ووژني؛ ګواکې د بد امنی تاداو (بنياد) ږدي، او هغه د ګردو انسانانو د وژلو او د عمومي بد امنی ور پرانيځي، او هغه څوک چې يو سړی ژوندی کوي، يعنې د کوم ظالم قاتل له لاسه يې ژغوري (ساتي)؛ يا هم د کوم ناروا قتل مخه نيسي، ګواکې دی په خپل دې عمل سره نورو ګردو انسانانو ته هم د ژغورلو (ساتلو) او مأمون پاتې کېدلو دعوت ورکوي، او دغې نېکی ته دوی ګرد سره رابولي.

وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فِى الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿۳۲﴾

او خامخا په تحقيق راغلي وو دوی ته رسولان ځمونږ په حکمونو ښکاره، بيا په تحقيق سره ډېر له دوی نه پس له دې (راتلو د رسولانو نه هم) په ځمکه (په ملک) کې خامخا مسرفان (له حده تېريدونکي) دي.

تفسير: ځينی علماو له «بينات» څخه ښکاره حکم مراد کړی دی، او دا هم ممکن دي چې له «بينات» څخه هغه ښکاره معجزې او دلائل مراد وي، چې هغو سره د کوم رسول د ﴿مِنْ عِنْدِاللهِ﴾ کېدلو تصديق وشي، يعنې د (بني اسرائيلو) ډېرو خلقو داسې ښکاره آثار ليدلي دي، او ډېر هسې ښکاره حکمونه يې اوربدلي دي، خو سره له هغه هم له خپل ظلمه او طغيانه او تيري څخه يې لاسونه نه دي اخيستي، د معصومو انبياوو عليهم السلام وژل او په خپلو منځو کې ناحقې وينې تويول د دوی دائمي عادت دی، او نن ورځ هم د خاتم الأنبياء صلى الله عليه وسلم د قتل (معاذ الله) يا ايذاء او د مسلمانانو آزار او تذليل لپاره هر راز ناولي پلمې (منصوبې) او سازشونه کوي.

اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِى الْاَرْضِ فَسَادًا اَنْ يُّقَتَّلُوْٓا اَوْ يُصَلَّبُوْٓا اَوْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ ۭ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِى الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۳۳﴾

بېشکه همدا خبره ده چې جزا د هغو کسانو چې جنګ کوي دوی له (دوستانو) د الله او د رسول

د ده سره، او سعي کوي (منډې وهي) دوی په ځمکه (په ملك) کې لپاره د فساد (او بد امنۍ غورځولو) چې دوی ووژلی شي، یا دې په دار کړ شي، یا دې پرې کړی شي لاسونه د دوی او پښې د دوی سره مخالفې (یعنې ښې لاس او کيڼه پښه یا عکس د دې) یا دې وشړلی شي له ځمکې (په حبس سره یا له هغه ځایه بل لري ځای ته) دا (مذکوره جزا) دغو (غلو) ته رسوایي ده، په دنیا کې او (شته) دغو (غلو) ته پـه آخرت کې عذاب ډېر لوی.

تفسیر: اکثر مفسرین له دې څخه لاره شُوکول او داړه اچول مرادوي، مګر که دا الفاظ په خپل عموم باندې پرېښود شي؛ نو مضمون لا وسیع کېږي، د دې آیت هغه شان نزول چې په صحیحو احادیثو کې راغلی دی، هغه هم د همدې مُدّعا مُقتضي دی، چې دا الفاظ پر خپل عموم پرېښود شي.

«له الله جل جلاله یا د ده له رسول صلی الله علیه وسلم سره جنګ کول» یا «په ځمکه کې فساد یا بد امني خورول» دا دواړه لفظونه داسې دي، چې په دې کې د کفارو حملې، د ارتداد، فتنې، لار شکول، داړه اچول، نا حق قتلول، نهب، مجرمانه پلمې (منصوبې)، اغوا کوونکي نشرات، او مضر تبلیغات ګرد سره داخلېدی شي، او له دې ځنې هر یو جرم داسې دی، چې د هغه مرتکب له دې څلورو واړو سزاګانو څخه چې پاس په دې آیت کې ذکر شوي دي، د یوې نه یوې هرو مرو مستحق ګرځي.

د غلو احوال څلور صورتونه لري:

۱ - چې مړګ یې کړی وي، مګر مال وړلو ته یې لاس نه وي رسېدلی. (نو داسې غله دې مړه کړی شي !).

۲ - چې هم یې مړګ کړی وي، او هم یې مال وړی وي، (نو داسې غله دې وروسته له وژلو پر دار کړی شي !).

۳ - چې مال یې لوټ کړی وي، خو مړګ یې نه وي کړی (نو د داسې غله دې لاسونه او پښې سره مخالفې پرې کړی شي).

۴ - چې نه یې وژل کړي و ي، او نه یې مال وړی وي، او د قصد او تیارۍ نیولو څخه وروسته نیول شوی وي، (نو داسې غله دې په بندې کولو سره د مځکې له مخ څخه ورک شي)، په دغو څلورو حالتونو کې بالترتیب هم دا څلور سزاګانې مقررې دي، چې پاس (په آیت او بین القوسین کې) ذکر شوي دي، د غلو بل کوم لرې ځاي ته فرارول او هلته یې بندي کول او قید ساتل د امام (ابو حنیفه رحمه الله) مذهب دی.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِن قَبْلِ أَن تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ ۖ فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٤﴾

مګر هغه کسان چې توبه وباسي پخوا له هغه نه چې قادر شئ (تاسې) پر هغوی باندې (نو دا حدود الله ترې ساقطیږي) نو پوه شئ په دې چې بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: دا پاس ذکر شوې سزاوې چې د حدود الله او «حق الله» پر ډول دي، دا ګردې پخوا له نیولو څخه په توبه ایستلو سره معافېدی شي، مګر حقوق العباد نشي معافېدلی، یعنې که د چا مال یې اخیستی وي؛ نو ضمان ورکول پرې اوړي، که قتل یې کړی وي، نو قصاصیږي، هو د دې شیانو معافول د مال د خاوند او د مقتول د ولي حق دی.

تنبیه: له دې حد څخه ما سوا نور حدود په توبه باندې له سره نه ساقطیږي، لکه د زنا حد، د شرب الخمر حد، د سرقې حد، د قذف حد.

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَٱبْتَغُوٓا۟ إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ﴾

اې هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اې مؤمنانو !) وويرېږئ تاسې ! له الله، او طلب كړئ ! ده ته وسيله (په طاعت سره).

تفسير: د «الوسيلة» تفسير ابن عباس رضي الله تعالى عنه، مجاهد، أبو وائل، حسن او نورو أسلافو او مشرانو رحمهم الله په «قربت» سره كړى دى، نو د وسيلې لټولو معنى به دا وي چې: د هغه د قرب وسيله ولټوئ !، قتادة «رحمه الله» ويلي دي: «أي تقربوا إليه بطاعته والعمل بما يُرضيه» «د الله تعالى نژدېوالى حاصل كړئ ! په حكم منلو د ده او په غوره عمل»، يو شاعر وايي:

إذا غفل الواشون عُدنا لوصلنا *** وعاد التصافي بيننا والوسائل

په دې كې هم دغه د قرب او اتصال معنى مراد ده، او همداسې دى هغه چې په حديث كې راغلي دي چې «وسيله» په جنت كې يو ډېر ښه اعلى منزل دى، چې د دنيا كوم يوه بنده ته ور رسيږي، رسول الله مبارك ارشاد فرمايلى: «وروستـه لـه آذانه له الله جل جلاله څخې ځما لپاره هم دغه مقام وغواړئ !»، نو د هغه مقام نوم هم «وسيله» د همدې له امله ايښى شوى دى، چې د جنت له ټولو منازلو څخې هغه مقام (عرش الرحمن) ته نژدې دى، او حق تعالى د قرب په مقاماتو كې له ټولو څخه پاس واقع دى.

په هر حال لومړى يې وفرمايل چې: وويرېږئ ! له الله جل جلاله څخې، ليكن دا ويرېدل داسې نه دي لكه چې سړى له مار يا لړم يا زمري يا ليوه يا نورو څخې ويريږي ! او ترې لرې تښتي؛ بلكه له دې خبرې څخه وويرېږئ چې د ده له خوښې او رحمت څخه لرې چېرې ونه لوېږئ ! نو ځكه يې وروسته له ﴿ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ﴾ څخه ﴿وَٱبْتَغُوٓا۟ إِلَيْهِ ٱلْوَسِيلَةَ﴾ وفرمايل، يعنې د ده له ناخوښى، لرېوالي، او بيلتون څخه وويرېږئ !، او د وصول او قرب الى الله د حصول لپاره كوښښ وكړئ !، او ښكاره ده چې له كوم شي سره مونږ هلته قريب كېدى شو، چې تر هغه پورې د رسېدلو ټولې لارې قطعې (طى) كړو، او پر هغې باندې په تللو هغه ته ور رسېدى شو، نو د همدې په نسبت فرمايي: ﴿وَجَـٰهِدُوا۟ فِى سَبِيلِهِۦ﴾ «جهاد وكړئ د ده په لاره كې» يعنې پر هغې باندې د تللو ښه پوره كوښښ وكړئ ﴿لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ «څو تاسې دهغه قرب حاصل كړئ، او په خپل مراد ورسېږئ او برياليان (كامياب) شئ !».

«توسل» يوله هغه الفاظو څخې دى چې په هغى كې اجمال او ابهام دى، نو دهغى نفي مطلقاً يا اثبات مطلقاً دواړه صحيح نه دي، بلكه په دې كې تفصيل دى، ځكه توسل په دوه ډوله دى:

لومړى: روا او مشروع توسل، لكه د الله تعالى په نومونو، صفتونو توسل كول، او هغه الله تعالى ته وسيله ګرځول، لكه چې ووايي: اې الله، ته رحيم يې، پر مونږ رحم وكړې، ته غفور، غفار يې، مونږ ته ګناهونه را معاف كړې، ته رزاق يې، مونږ ته روزي راكړې، ته خالق، وهاب يې؛ مونږ ته اولاد راكړې، او همداسې نور نومونه او صفتونه.

او يا هم پر خپل كوم نېک عمل، يا پر خپل ايمان، يا د الله تعالى سره، يا د هغه د رسول صلى الله عليه وسلم سره، يا د صحابه كرامو او نېكانو مسلمانانو سره پر محبت كولو توسل وكړي، يعنې الله تعالى ته يې وسيله كړي، او له الله تعالى څخه د دغه نېک عمل په وسيله كومه غوښتنه وكړي، لكه د آل عمران سورت په دې آيت كې چې راغلي: ﴿رَّبَّنَآ إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِى لِلْإِيمَـٰنِ أَنْ ءَامِنُوا۟ بِرَبِّكُمْ فَـَٔامَنَّا ۚ رَبَّنَا فَٱغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّـَٔاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ ٱلْأَبْرَارِ﴾.

او يا لكه چې د حديث الغار هغه درې كسانو قيصه چې هغوى په يوې باراني ورځ په كوم غار كې ننوتي وو، او بيا د غار خوله پر كومه غټه تيږه بنده شوه، او هيڅ كومه لار د خلاصون نه وه، نو درې واړو سره مشوره وكړه چې نن ورځ بايد الله تعالى ته خپل هغه نېک عمل وسيله كړو چې مخكې مو كړى وو، او بيا هر يوه خپل خپل عمل الله ته وسيله كړ، او الله له دغه مصيبت څخه خلاص كړل.

او په آيت کې هم ورته اشاره شوې ده، چې د وسيلې د امر نه وروسته يې د جهاد في سبيل الله امر کړی دی، او دا هم يو بهتر عمل دی.

او يا هم کوم نېک صالح ژوندي انسان ته ورشي، او دعا ورځخه وغواړي، چې ماته دعا وکړه، چې الله تعالى مې دغه مقصد پوره کړي، لکه چې صحابه کرام به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورتلل، او دعا به يې ترې غوښتله.

دويم ډول: ممنوع توسل دی، او هغه په دوه ډوله دی:

لومړی ډول: شرکي توسل، چې په هغه کې د الله تعالى ځخه پرته بل چاته آواز، چيغه، او له هغه ځخه د حاجت غوښتنه شوي وي، ځکه چې دا په اصل کې توسل نه بلکه دعا او استغاثه ده، چې په مافوق الأسباب امورو کې عبادت ګڼل کيږي، او هغه يوائې د الله تعالى حق دی، نو بل څوک په کې شريکول د الله تعالى سره شرک او کفر ګڼل کيږي، لکه چې يو مړي يا غائب ځخه څه حاجت وغواړي، يا ورته ووايي چې: زما لپاره دغه حاجت له الله نه وغواړه.

دويم ډول: بدعي توسل، چې پيغمبر صلى الله عليه وسلم د هغه له وفات ځخه وروسته الله جل جلاله ته وسيله کړي، لکه چې ووايي: د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په خاطر، وسيله، يا په روی زما دغه حاجت پوره کړه، نو دا کار بدعت ګڼل کيږي، ځکه په شريعت کې د دې اجازه نه ده شوې، او نه هم د هغه صحابه کرامو دغه ډول توسل کړی دی.

وَجَاهِدُوا فِي سَبِيلِهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٣٥﴾

او جهاد وکړئ په لاره د ده کې (د کلمة الله د اعلاء په غرض) لپاره د دې چې په مراد ورسېږئ (خلاص شئ له عذابونو).

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٣٦﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، که وي دوی ته هغه (اقسام د اموالو) چې په ځمکه کې دي ټول، او په قدر د دې نور (هم) له دې سره شي، لپاره د دې چې فديه وکړي دوی په هغه سره له عذابه د ورځې د قيامت ځخه؛ نو قبوله به نه کړه شي (دا فديه) له دوی ځخه، او شته دوی ته عذاب ډېر دردناک.

تفسير: د آخرت برئ او کاميابي په «تقوی»، «ابتغاء الوسيلة» او په «جهاد في سبيل الله» سره حاصلېدی شي، او په رشوت او فديه او نورو پلمو (منصوبو) سره له سره نه حاصليږي.

يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٧﴾

اراده به کوي (غواړي به) دوی چې ووځي دوی له اوره (د دوزخ) حال دا چې نه به وي دوی وتونکي له هغه اوره، او شته دوی ته عذاب دائم (بې انتهاء بلا انقطاع).

تفسير: له ډېرو احاديثو ځخه ثابته شوې ده، چې ډېر ګناهکار مؤمنان به تر يوې مودې پورې په دوزخ کې پاتې کيږي، او بيا به ايستلی کيږي، او د الله تعالى په فضل او مرحمت سره به جنت تـه داخليږي، دا آيت له دغو احاديثو ځخه مخالف نه دی، ځکه دلته په دې آيت کې له ابتداء ځخه يوائې د کفارو حال بيان شوی دی، او د مؤمنانو په نسبت هيڅ يوه خبره نشته.

وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا نَكَٰلًا مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۳۸﴾

او غل (نارينه) او غله (ښځه) نو پرې کړئ تاسې لاسونه د دوی (دواړو) لپاره د جزا د هغه عمل چې کړی دی دواړو د تنبيه لپاره له جانبه د الله، او الله ډېر قوي دی (غالب په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: ﴿جَزَآءً﴾ الآية ـ يعنې هغه سزا چې غله ته ورکوله کيږي، هغه د مسروقه مال سزا نه ده، بلکه د ده د فعل «سرقې» سزا ده، تر څو چې په هغه سره نور غله ويښ او تنبيه شي، بلا شبهه پر هر هغه ځای کې چې دا حدود جاري کيږي؛ نو دوه ـ درې غلو ته د سزا ورکولو څخه وروسته د غلا وَر بيخي بنديږي.

نن ورځې د نوي «تهذيب» مدّعيان دا راز حدود وحشيانه سزا بولي، ليکن که غلا کول د دې صاحبانو په نزد «يو مهذب کار» نه وي؛ نو يقينا د دوی «مهذبه» سزا د دې غير مهذب کار (غلا) استيصال او له منځه وړلو کې له سره مؤثر نشي واقع کېدی، که د لږ څه سختۍ په تحمل سره ډېر غله مهذب شي؛ نو ښايي چې دغه د تهذيب حاملان او مدعيان خوښ شي، ځکه چې د دوی له «تهذيبي مشين» سره دغه «وحشت» مدد کوي.

ځيني په نامه مفسرين هم په دې کوښښ کې دي، چې «قطع اليد» لاس پرې کول د غلا انتهايي سزا وټاکي ! (مقرر کړي)، او له دې ځنې ښکته او خفيفه سزا له حق شريعت څخه حاصله او استخراج کړي، مګر مشکل خو دادی چې له دې ځنې ښکته سزا نه پـه قرآن کريم کې چېرې شته، او نه د نبوت په عهد او د لويو اصحابو په زمانو کې د هغې کوم نظير او مثال ليدلی شوی دی، آيا کوم سړی داسې دعوی کولی شي، چې په دومره اوږده زمانه کې په هغو غلو کې چې نيولي شوي دي يو تن هم ابتدايي غل نه وو، چې پر هغه باندې يواځې د جواز په ملحوظ د لاس پرې کولو په ځای کومه ابتدايي سزا تطبيق او جاري شوي وي؟.

کوم ملحد په پخوانی زمانه کې پر «حد السرقه» داسې يوه شبهه کړې وه: «کله چې شريعت د يوه لاس ديت پنځه سوه ديناره مقرر کړی دی، نو داسې يو قيمتدار لاس (چې پرې پرېکولو يې پنځه سوه ديناره واجبيږي) د پنځو يا لسو روپيو په غلا کولو به څرنګه امکان ولري، چې پرې کړی شي؟» يوه عالم د ده په ځواب کې څنګه ښه ويلي دي !: «إنها لما كانت أمينة كانت ثمينة، فلما خانتْ هانتْ» «کله چې هغه لاس امين وو؛ قيمت يې درلود (لرلو)، کله چې يې غلا وکړه او خائن شو؛ نو ذليل شو»، نو قيمت يې کم شو.

﴿وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ «او الله ډېر قوي غالب دی، ښه حکمت والا» لکه چې غالب دی نو ځکه حق لري هر هغه حکم چې اراده يې وکړي؛ جاري يې کړي، او هيڅوک د ده په مقابل کې څه نشي ويلی، او څنګه چې ورسره حکمت والا هم دی؛ نو ځکه د دې خبرې هيڅ احتمال نشته، چې تش د خپل کامله اختياره کار واخلي، يا بېځايه حکم نافذ کړي، او د خپلو ناتوانو بندګانو د مالونو د ساتنې لپاره څه انتظام ونه کړي ـ دا د ده له عزت او غلبې سره منافي دی ـ او د غلو او داړه مارانو هم داسې خوی او آزاد (او بې له ښې) پرېښودل د ده له حکمت څخه مخالف کار دی.

فَمَن تَابَ مِنۢ بَعْدِ ظُلْمِهِۦ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ ٱللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۳۹﴾

نو هر چا چې توبه وويسته (له بدو کارونو) وروسته له ظلم خپل او اصلاح (ښه يې کړ عمل خپل)؛ پس بېشکه الله رجوع کوي (په رحمت سره) په ده، بېشکه الله ډېر مغفرت والا دی (د خطياتو) ښه مهربان دی.

تفسير: يعنې توبه که رښتيا او د زړه څخه وي، چې د هغې لپاره دا هم ضروري ده، چې د غلا مال دې د هغه مالک ته بېرته ورکړي، او که ترې تلف شوی وي؛ نو ضمان دې ورکړي، او که ضمان هم نشي ورکولی؛ نو ښښنه دې ترې وغواړي،

او پر خپل دغه فعل دې نادم او پښېمانه شي، او وروسته له هغه دې ترې د ځان ژغورنې (بچ کولو) عزم وکړي، نو له داسې توبې ايستلو څخه هيله (امکان) او اميد شته چې حق تعالى له ده څخه أخروي عقوبت هم لرې کړي، چې د هغه په مقابل کې دنيوي سزا هيڅ اهميت نه لري.

أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤٠﴾

آيا نه پوهېږې (اى محمده ! يا اى سامعه) چې بېشکه الله (خاص) دى ده ته ملك (سلطنت) د آسمانونو او ځمكې، په عذابوي (الله) هر هغه څوك چې اراده وفرمايي (د عذاب يې)، او مغفرت کوي هر هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د مغفرت يې)، او الله پر هر شي باندې ښه قادر دى (نو په تعذيب او مغفرت هم قادر دى).

تفسير: کله چې حقيقي سلطنت او حکومت د الله تعالى دى، نو بلا شبهه دى اختيار لري، هر هغه څوك چې مناسب وګڼي، معاف يې کړي، او هر هغه چا ته چې په خپل حکمت او عدل سره د سزا ورکولو اراده وکړي، سزا ورکوي، او نه يوازې دا چې د ده په معافولو او سزا ورکولو کې ده ته کلي اختيارات حاصل دي، بلکه د دې اختياراتو له استعمالولو څخه يې هيڅوك نشي منع کولی، ځکه چې دى پر هر شي باندې پوره قوت او قدرت لري.

يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ لَا يَحْزُنكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِينَ قَالُوا آمَنَّا بِأَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِن قُلُوبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِينَ هَادُوا ۛ سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ سَمَّاعُونَ لِقَوْمٍ آخَرِينَ لَمْ يَأْتُوكَ ۖ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ مِن بَعْدِ مَوَاضِعِهِ ۖ

اى (ځما) رسوله (محمده !) په غم کې دې نه آچوي تا (فعل د) هغو کسانو چې جلتي کوي (او عناداً ځانونه غورځوي) په کفر کې؛ له هغو کسانو چې ويل دوى: ايمان راوړى دى مونږ (تش) په خولو، حال دا چې ايمان نه وو راوړى زړونو د دوى، او ځينې له هغو کسانو چې يهوديان دي (يعني د بني قريظې يهوديان او د مدينې منافقان) ډېر اورېدونکي دي لپاره د دروغ ويلو، ډېر اوريدونکي دي (د خبرو ستا يعني دوى جاسوسان دي لپاره د رسولو) قوم بل ته چې نه دي راغلي تاته، آړوي دوى کلمې (د تورات) وروسته له هغو ځايونو خپلو څخه (چې الله ايښي دي).

تفسير: په پخوانيو آياتونو کې د داړې، غلا او د نورو د حدودو بيان وکړ شو، اوس د ځينو هغو نورو اقوامو احوال اورول کيږي، چې دوى په حدود الله کې تحريفات وکړل، او خپل ځانونه يې د لوى عذاب مستحق وګرځول، «بغوي» رحمه الله د دې واقعې تفصيل داسې ليکلى دى:

«د خيبر يو محصن نارينه يهودي له يوې يهودۍ ښځې سره چې محصنه وه؛ زنا وکړه، سره له دې چې په (تورات) کې د دې جرم سزا رجم (په ګټو سره ويشتل) وو، مګر د دې دواړو اعتبار او لويي د هغه «رجم» د اجراء کېدلو مانع وګرځېدل، نو په خپلو منځونو کې يې سره مشوره وکړه، او ويې ويل: «دا سړى چې په يثرب کې دى محمد صلى الله عليه وسلم، د ده په کتاب کې د زاني لپاره د (رجم) حکم نشته، بلکه د دُرې وهلو حکم شته، نو د «بني قريظې» له يهودانو څخه څو سړي ورولېږئ ! ځکه چې «بني قريظه» د محمد همسايګان او له محمد سره د روغې معاهده هم لري، چې دوى د هغه خيال معلوم کړي»، هماغه وو چې يو څو تنه د دې خبرې لپاره ولېږل شول، چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم نظريه معلومه ـ او دا پوښتنه ترې وکړي چې د «محصن زاني» لپاره څه سزا تجويزوي؟ «که دى د دُرې وهلو د سزا حکم وکړي؛ نو ترې اقرار

واخلئ او ويې منئ، او که د (رجم) حکم واورئ؛ نو مه يې منئ !» د دوی د دې پوښتنې په نسبت رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې: «آيا تاسې زما پر فيصله قانع او راضي يئ؟» دوی اقرار وکړ چې «هو !»، دلته د پاک الله له لوري جبرئيل عليه السلام د «رجم» حکم راووړ، مګر هغوی له خپل اقراره بېرته وګرځېدل، بالآخر رسول اکرم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «ستاسې لوی عالم د «فدک» اوسېدونکی (ابن صُوريا) څنګه سړی دی؟ ګردو وويل چې: «نن په ګرد جهان کې د ده په شان په موسوي شرائعو ډېر پوه او ښه عالم بل څوک نشته»، رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه راوغوښت، او په ډېر سخت حلف سره يې ترې پوښتنه وکړه چې په «تورات» کې پر دغي ګناه څه سزا مقرره ده؟ سره له دې چې نورو يهودانو د دغه حکم په پټولو کې له هر ممکن کوښښ څخه کار آخيست ـ ولې د دوی دغه پرده د عبد الله بن سلام په وسيله له منځه تللې وه، او حقيقت ښکاره شوی وو، خو سره له هغه (ابن صُوريا) چې د دوی مُسَلّم او معتمد عالم وو؛ په هر ډول سره چې وو، په دغې خبرې يې اقرار وکړ، چې د دې جرم سزا په «تورات» کې همدا (رجم) دی، وروسته له هغه (ابن صُوريا) هغه ګرد حقائق هم څرګند کړل، چې يهودانو په څه ډول سره د (رجم) حکم ليرې او د هغه په ځاي يې دا حکم ليکلی دی چې: زاني دې په دُرې سره ووهلی شي، او مخ يې تور او په خره باندې دې چپه سپور ګرځاوه شي.

الحاصل رسول أکرم صلی الله عليه وسلم پر هغو دواړو (نارينه او ښځې) باندې د (رجم) امر جاري کړ، او ويې فرمايل: «ای الله ! زه نن هغه لومړنی سړی يم، چې ستا دا حکم مې په داسې حال کې په دنيا کې جاري کړ؛ چې هغه مړ شوی وو».

د «سماعون» معنی ډېر اورېدونکي او غوږ جارايستونکي ده، نو بيا د «ډېرو اورېدلو» اطلاق کله کله په جاسوسی هم کيږي، او کله يې معنی په «زيات قبول کوونکو» هم کيږي لکه «سمع الله لمن حمده» يعنې د اورېدلو معنی قبول کول دی، شيخ الهند «رحمه الله» دلته اوله معنی مراد کړې ده، ليکن ابن جرير «رحمه الله» او نورو محققينو پر دويمې معنی حمل کړې ده.

﴿سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ﴾ يعنې د دروغو او باطلو ډېر منونکي او قبول کوونکي.

﴿سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ﴾ يعنې بل جماعت (چې د خيبر يهودان دي) چې د (بني قريظه) سړي يې ليږلي وو، او هغوی پخپله تاسې ته درنه غلل، د دوی د خبرو زيات منونکي، (او دغه يهودان داسې کسان دي چې) د الله تعالی په احکامو کې تحريف کوي، يا د يو ځاي خبرې په بل ځاي پورې لګوي، (لکه د «رجم» آيت پټوي، او د هغه په ځای دُرې او مخ تورول ښيي).

يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ط

وايي دغه (د خيبر يهوديان خپلو ليږليو شويو ته): که درکړی شي تاسې ته دا (محرّف حکم) نو وايې خلئ ! (او ويې منئ !) او که در نه کړی شو تاسې ته دا (حکم) نو وېرېږئ تاسې (له قبوله د هغه).

تفسير: يعني که د دُرې وهلو حکم وموموئ، هغه ومنئ ! که نه ! ګواکې دوی غواړي چې د الله تعالی شريعت د خپل هوا او هوس تابع کړي.

وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ فِتْنَتَهٗ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهٗ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ط

او هر هغه څوک چې اراده وکړي الله د فتنې (د ګمراه کولو) يې نو له سره به مالک نشې ته (ای محمده !) د ده لپاره له الله نه د هيڅ شي (چې فتنه او هلاک ترې دفعه کړي).

**تفسیر:** هدایت او ضلالت، خیر او شر، هر شی بې د الله تعالی له ارادې څخه نشي موجودېدی، دا داسې یو اصل دی، چې انکار یې له تسلیم څخه ډېر مشکل دی، فرض یې کړئ ! یو سړی د غلا کولو اراده وکړي، لیکن د الله تعالی اراده دا وي چې هغه غلا ونه کړي، نو که دا سړی په خپله اراده کې بری ومومي نو لازمیږي چې (معاذ الله) الله تعالی د ده په مقابل کې عاجز شو، او که د الله تعالی اراده د بنده پر ارادې غالبه شي، نو لازمیږي چې په دنیا کې دې هیچېرې د غلا او د نورو بدو کارونو هیڅ نوم او اثر پاتې نشي ـ او که د الله تعالی د خیر او د شر د هیڅ یوه اراده نه کوي، نو له هغه څخه (معاذ الله) د ده تعطل، غفلت او سفاهت لازمیږي، «تعالی الله عن کل الشّرور وتقدّس».

خو لنډ ځواب یې دا دی چې د الله تعالی اراده په دوه ډوله ده:

۱ - کَـوْنِي او قدري اراده: او هغه دا چې الله تعالی د کوم شي د وجود اراده په تقدیر، او ازل کې کړې وه، نو دا کَـوْنِي قدري اراده ده، او هغه نه خطا کیږي، بلکه خامخا هغه شی موجودیږي، نو همغه یې په تقدیر کې لیکلی وي، ځکه د الله تعالی علم دهغه په تقدیر باندې لومړی دی، هغه ته معلومه ده چې کوم معین شخص که خپلې خوښې ته پرېښودل شي، نو هغه به څه کوي، نو په دغه تقدیري اراده ثواب او عذاب مرتب نه دی، او نه ورسره د الله تعالی رضا او خوښي شرط ده.

۲ - شرعي او دیني اراده: او هغه دا چې الله تعالی د خپل مخلوق څخه د خیر فعل او د شر څخه اجتناب غواړي، او د خیر او شر په کولو کې یې هغه ته اختیار ورکړی دی، او په همدې اراده باندې ثواب او عذاب مرتب دی، ځکه ددې ارادې په مقتضی که کوم شی موجودیږي، د الله تعالی خوښ دی، محبت ورسره لري.

او همدې ته په حدیث شریف کې اشاره شوې ده چې: «اعملوا فکل میسّر لما خُلق له» ـ ترجمه: «تاسې نېک عملونه کوئ، ځکه هر چا ته د هغه عمل توفیق ورکول کیږي، چې د کوم لپاره پیدا شوی وي».

حاصل دا چې د معاصیو او ګناهونو واقع کېدو ته د الله جل جلاله دوه قسمه ارادې متوجه دي:

(۱) شرعي اراده، چې له بنده څخه غواړي چې ګناه ونه کړي، نو دلته بنده ته اختیار دی، چې کوي او که نه، که ویې کړي؛ نافرماني شوه، او سزا به ورکوي، او که نه تابعداري شوه ثواب ورکوي.

(۲) کوني اراده: کومه چې الله د خپل قدیم علم مطابق لیکلې ده، چې فلانې شخص که خپلې خوښې ته پرېښودل شي، نو دغه ګناه کوي، او هغه یې ورباندې لیکلې ده، خو د ده دا ګناه کول دلته د شرعي ارادې خلاف، او د کوني ارادې سره برابر دي، ځکه په کوني اراده کې مراد نه بدلیږي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَمْ يُرِدِ اللَّهُ أَن يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ ۚ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٤١﴾

دغه (یهودان او منافقان) همغه کسان دي چې اراده نه ده فرمایلې الله (د دې) چې پاک کړي زړونه د دوی (له کفر نه)، (شته) دوی ته په دنیا کې ذلت (شرمندګي) او شته دوی ته په آخرت کې عذاب ډېر لوی.

**تفسیر:** دا شبهه چې الله جل جلاله پر دې باندې قادر دی؛ چې د دوی هغه ګرد شرارتونه او غلطې چارې جبرا منع کړي، او دوی مجبور وګرځوي، چې هیڅ ضد او سرزوري ونشي کړی، نو ښېشکه زه دا منم چې د الله تعالی د قدرت په مقابل کې دا کوم مشکل کار نه دی، لکه چې په (۱۱) جزء د یونس د سورت په (۹۹) آیت (۱۰) رکوع کې داسې یو آیت لولو: ﴿وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَآمَنَ مَن فِي الْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيعًا﴾.

لیکن د دې دنیا ګرد نظام داسې کښېښود شوی دی، چې بندګان د خیر او شر په اکتساب کې مجبور نه دي، او که ټول یواځې د خیر په کولو سره مجبور شوي وي، نو د عالم د تخلیق حکمتونه او مصالح به نه پوره کېدل، او د حق تعالی ډېر صفات به نه راڅرګندېدل، مثلا د عفو، غفور، حلیم، منتقم، ذو البطش، الشدید، قائم بالقسط، مالك یوم الدین او د نورو په مناظرو به نه پوهیدو، حال دا چې د دې عالَم د پیدا کېدو اصلي غرض او غایه دا ده چې د الله تعالی صحیح بندګي او عبادت وشي، او د هغه د ګردو (ټولو) کمالیه وو صفاتو مظاهره وشي، هر هغه مذهب یا انسان چې الله تعالی فاعل مختار ګڼي، د خپلې دې دعوی په پای (آخر) کې پرته له دې غرض څخه بل شی نشي ښوولی، ﴿لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا﴾ (٢٩ جزء د الملك سورت (٢) آیت (١) رکوع) له دی نه د زیات تفصیل ځای دلته نشته، بلکه دومره لیکل هم ځمونږ له موضوع څنې زیات دي.

﴿سَمّٰعُونَ لِلْكَذِبِ أَكّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ۚ فَإِنْ جَآءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ۖ﴾

(دوی) ډېر اوریدونکي (منونکي دي) لپاره د دروغ ویلو، ډېر خوړونکي دي د حرامو، نو که راغلل دوی تاته؛ نو حکم (پرېکړه) وکړه په منځ د دوی کې یا مخ وګرځوه له دوی نه.

**تفسیر:** له ابن عباس، مجاهد، عکرمه او نورو اکابرو سلفو رضي الله عنهم څخه منقول دي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا اختیار په ابتداء کې وو، په آخر کې کله چې د اسلام تسلط او نفوذ کامل شو، نو داسې ارشاد وشو: ﴿وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ أَنْزَلَ اللّٰهُ﴾ «یعنې د دوی د منازعو فیصلې د شریعت له حکم سره سمې وکړه !» مطلب دا چې د اعراض او ځان په څنګ کولو څه ضرورت نه دی پاتې.

﴿وَإِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَضُرُّوكَ شَيْئًا ۖ وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ۚ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴿٤٢﴾﴾

او که مخ وګرځوې له دوی نه (او حکم ونه کړې) نو له سره به ضرر ونه رسوي دوی تاته د هیڅ شي، او که حکم (پرېکړه) دې کوله؛ نو حکم (پرېکړه) وکړه په منځ د دوی کې په عدل (انصاف) سره، بېشکه الله دوست ګڼي عدل کوونکي (په حکم کې).

﴿وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ ۚ وَمَآ أُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٣﴾﴾

او څرنګه به حکم (منصف) وګرځوي دوی تا (ای محمده !) حال دا چې له دوی سره تورات دی چې (شته) په هغه کې حکم د الله، بیا ګرځي دوی (له هغه حکم ستا څخه) پس له هغه (چې دوی ته حَکَم وګرځولې)، او نه دي دغه کسان له سره باور کوونکي (نه په تا او نه په کتاب خپل).

**تفسیر:** یعنې یهودان د هغه «تورات» په فیصله چې آسماني کتاب یې ګڼي؛ نه راضي کېږي، نو په حقیقت کې دوی پر هیڅ یو کتاب باندې ایمان نه لري، نه پر قرآنکریم، نه پر «تورات» باندې.

پخوانی رکوع کې یې د «تورات» او د «انجیل» مدح وفرمایله، او تنبیه یې راکړه چې دغو نالائقانو د داسې عمده کتاب (چې په کې ډېر علوم او هدایات وو) قدر ونه کړ، او داسې یې ضایع کړ، چې نن د اصلي شي پته لګول هم په کې مشکل شوي دي.

إِنَّآ أَنزَلۡنَا ٱلتَّوۡرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌۚ

بېشکه مونږ نازل کړې (لېږلې) مو دی تورات (چې شته) په هغه کې هدايت (لار ښوونه حق ته) او رڼا (چې شرعي احکام پرې منکشف کېږي).

تفسير: يعني د وصول الی الله طالبانو ته هدايت ـ او د هغو کسانو لپاره چې د شبهاتو او مشکلاتو په تيارو کې بند پاتې دي؛ د رڼا کار ورکوي.

يَحۡكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسۡلَمُواْ لِلَّذِينَ هَادُواْ وَٱلرَّبَّـٰنِيُّونَ وَٱلۡأَحۡبَارُ

حکم به کاوه په هغه سره انبياوو (د بني اسرائيلو) هغو چې حکم منونکي وو دوی (د الله) هغو کسانو ته چې يهوديان وو، او (حکم به کاوه پرې) رباني عارفانو او عالمانو (د دوی).

تفسير: يعني په «تورات» کې داسې عظيم الشأن دستور العمل وو؛ چې ډېرو انبياوو، اهل الله وو او علماوو به د هغه له هدايتونو سره سم حکمونه صادرول، او د منازعو او جګړو پرېکړې به يې په هغو سره کولې.

بِمَا ٱسۡتُحۡفِظُواْ مِن كِتَـٰبِ ٱللَّهِ وَكَانُواْ عَلَيۡهِ شُهَدَآءَۚ

په سبب د هغه شي چې طلب د حفاظت يې شوی وو له دوی څخه چې کتاب د الله دی (يا) د دې لپاره چې دوی ساتونکي درولی شوي وو پر کتاب د الله باندې، او وو دوی په هغه باندې شاهدان (په حقانيت يې يا ساتونکي له تبديله).

تفسير: يعني دوی د «تورات» د ساتنې ذمه واران ګرځولی شوي وو، او څرنګه چې د قرآنکريم په شان د ﴿وَإِنَّا لَهُۥ لَحَـٰفِظُونَ﴾ وعده له هغه سره نه وه شوې ـ نو تر هغې پورې چې علماوو، احبارو، او نورو د خپلو ذمه واريو احساس کاوه؛ «تورات» محفوظ او معمول به وو، آخر د دنيا خوښوونکو بدو علماوو په لاسونو تحريف او ضايع شو.

فَلَا تَخۡشَوُاْ ٱلنَّاسَ وَٱخۡشَوۡنِ وَلَا تَشۡتَرُواْ بِـَٔايَـٰتِي ثَمَنًا قَلِيلًاۚ

نو مه ويرېږئ تاسې له خلقو نه (په اظهار او اجراء د حق کې) او وويرېږئ له ما (په پټولو د حق کې) او مه پېرئ (مه اخلئ) تاسې په آيتونو څما قيمت لږ (چې هغه رشوت او جاه دی).

تفسير: يعني د خلقو له خوفه يا د دنيوي طمعې له امله (وجې) په آسماني کتاب کې تبديل او تحريف مه کوئ! او د هغه احکام او اخبار مه پټوئ! او د الله تعالی له تعذيبه او انتقامه وويرېږئ! د «تورات» د عظمت شان او مقبوليت له څرګندولو څخه وروسته دا خطاب يا خو د يهودانو هغو رئيسانو او عالمانو ته کړی شوی دی، چې د قرآنکريم د نزول په وخت کې وو، څکه چې هم دوی د (رجم) له آيت څخه انکار کړی وو، او د نبي کريم «عليه أفضل الصلاة والتسليم» په نسبت پخوا ويل يې پټ کړي وو، او د هغه په معناګانو کې يې عجيب قسم تحريف او تبديل او وړاندې وروسته والی کړی وو، يا په دې منځ کې امت مسلمه ته نصيحت دی، چې تاسې د نورو اقوامو په شان په هيڅ وجه له هيچا څخه مه ويرېږئ! يا د مال او جاه په محبت کې په دغه اندازه مه اخته کېږئ!؛ چې آسماني کتاب ضايع کړئ، لکه چې لله الحمد دغه محمدي امت د خپل لوی قرآن يو توری هم نه دی لږ کړی، او نه يې ورک کړی، او تر نن پورې د پاک قرآن مطالب له هر راز تغيير او تحريف څخه محفوظ او مصون دي، او تل به په دې مقصد لکه نن او پرون بريالي او کامياب وي، او د مبطلينو او محرفينو هر راز زيار (محنت) او کوښښ به په دغه مورد کې بې اثره او ناکامه ثابتېږي.

وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ﴿٤٤﴾

او هر چا چې ونه کړ حکم په هغه شي چې نازل کړی (لېږلی) دی الله؛ نو دغه کسان هم دوی دي کافران.

تفسیر: د ﴿مَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ سره سم له حکم نه کولو څخه غالبا دا مراد دی، چې د منصوصو حکمونو له وجوده انکار وکړي، او د هغه په ځای نور احکام په خپله رایه او غو ښتنه سره منځ ته راوړي، لکه چې یهودانو د (رجم) د حکم په نسبت همداسې کړي وو، نو د داسې خلقو په کفر کې هيڅ شبهه نشته، او که داسې مراد وي، چې ﴿مَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ عقيدتاً مني، او پر خلاف د هغه عملا فیصله کوي، نو له کافر څخه به عملي کافر مراد وي، یعنې د هغه عملي حالت د کافرانو په شان دی.

وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنفَ بِالْأَنفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ

او لیکلي (فرض کړي) وو مونږ پر دغو (یهودانو) په دې (تورات) کې چې بېشکه نفس دې ووژلی شي په (بدل د بل) نفس کې، او سترګه دې (ړنده شي) په (بدل د بلې) سترګې کې، او پوزه دې (پرېکړه شي) په (بدل د بلې) پوزې، او غوږ دې (پرېکړی شي) په (بدل د بل) غوږ، او غاښ دې (وویستلی شي) په (بدل د بل) غاښ کې، او پرهارونه قصاص (بدل) دي برابر.

تفسیر: د قصاص دا حکم په موسوي شریعت کې وو، او د اصولو ډېرو علماوو تصریح کړېده، چې هغه پخواني شرائع چې څمونږ قرآنکریم یا څمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه نقل کړي دي، په دې شرط چې د هغو په نسبت رسول الله مبارك کوم انکار یا ترمیم نه وي فرمایلی؛ د دې امت په حق کې هم تسلیم دي، ګواکې بې له رده او له انکار د هغه اورول د تلقي بالقبول دلیل دی.

فَمَن تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ

نو هر چا چې عفوه وکړه د دې قصاص نو دغه عفوه کفاره ده ده ته (یعنې دی په دغې عفوې سره له ګناه پاکیږي).

تفسیر: یعنې د جروحو او زخمونو د قصاص معافول د مجروح د ګناهونو کفاره ګرځي، لکه چې په ځینو احادیثو کې د دې خبرې تصریح شوې ده، او ځینو مفسرینو دا آیت د جارح په حق کې ګڼلی دی، یعنې که مجروح جارح ته معافي وکړي، نو د جارح ګناه معافیږي، و الراجح هو الأول.

وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٤٥﴾

او هر چا چې ونه کړ حکم په هغه شي چې نازل کړی (لیږلی دی) الله؛ نو دغه کسان هم دوی دي ظالمان.

تفسیر: یهودانو د قصاص له حکم څخه هم مخالفت وکړ، په دوی کې «بني نضیر» چې ډېر معزز او قوي ګڼل کېده؛ له «بني قُریظه» څخه یې پوره دیت حصولاوه، او کله چې د دوی د تأدیې نوبت راته؛ نو نیمایي دیت به یې ادا کاوه، ځکه چې «بني قُریظه» د کمزورۍ له امله (وجې) له دوی سره همداسې معاهده تړلې وه.

اتفاقا د «بني قُريظه» له خوا د «بني نضير» سړي ووژل شو، دوی د خپل پخواني دستور سره سم خپل پوره دیت وغوښت، «بني قريظه» د دوی په ځواب کې وویل: «ځئ ! هغه زمانه تېره شوه، چې مونږ ستاسې د زور او قوت په سبب مجبور شوي وو، او دغه ظلم مو په غاړه اخیستی وو، اوس محمد صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلم مدینې منورې ته تشریف راوړی دی، او د ده مبارکه دوره ده، او دا امکان نه لري؛ چې مونږ د هغه دیت په مقابل کې چې له تاسې ځنې یې اخلو دوه چنده یې تاسې ته درکړو»، د دې وینا غرض او غایه دا وه، چې اوس د محمد رسول الله صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم په موجودیت کې محال دی، چې کوم قوي یو ضعیف لتاړ (چیت) او تر پښو لاندې کړي، یا یې وځپښي، ځکه چې په دې خبره باندې دګردو باور وو؛ چې محمد علیه السلام د هر ضعیف او قوي سره یو شان عدل او انصاف فرمایي، او د اقویاوو د ظلم او تیري په مقابل کې د ضعفاوو مرستې او لاس نیوی کوي.

د دې معاملې پای او انجام داسې شو، چې دوی ګرد سره محمدي دربار او عدلیې ته وروړاندې شول، او د «بني قُریظه» هغه خیال چې د هغه عدل او انصاف د مظهر په نسبت یې کړی وو؛ کټ مټ (هوبهو) درست او صحي وخوت.

د قصاص له حکم ځخه وروسته ﴿وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ الآية ـ له فرمایلو ځخه د دې واقعې په لوري اشاره ده، او څرنګه چې یې د «رجم» په شان د «قصاص» د حکم له مشروعیت ځخه صریحا انکار نه وو کړی، بلکه وروسته له مفاهمې او مشاورې به یې د شرعي حکم په خلاف یو حکم قائموه، نو دا د عدل له قانون ځخه اعتقادي مخالفت نه بلکه عملي مخالفت وو، نو ځکه یې د «کافرون» په ځای «ظالمون» وفرمایل، یعنې دا صریح ظلم دی، چې له قوي ځخه کم او له ضعیف ځخه زیات دیت واخیستل شي.

وَقَفَّيْنَا عَلَىٰ آثَارِهِم بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ ۖ وَآتَيْنَاهُ الْإِنجِيلَ فِيهِ هُدًى وَنُورٌ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرَاةِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٦﴾

او ولیږه مونږ وروسته له دغو انبیاوو (یا پر پلو د دوی) عیسی ځوی د مریمې (یعنې چې د هغوی د پښو پر منلو، دی هم رهي «روان» وو) حال دا چې مصدق (رښتیا ګڼونکی) وو د هغه کتاب چې پخوا له ده وو له تورات (چې هغه هم حق سماوي کتاب دی) او ورکړی وو مونږ ده (عیسی) ته انجیل (حال دا) چې په هغه کې هدایت وو (حق ته) او نور (رڼا) وه (بیان وو د شرعي احکامو)، او حال دا چې مصدّق (موافق) وو د هغه کتاب چې پخوا وو د ده نه له تورات ځخه او هدایت (لار ښوونکی) وو او موعظه (پند) وو لپاره د پرهېزګارانو.

تفسیر: یعنې عیسی علیه السلام په خپله ژبه د «تورات» تصدیق وفرمایه، او هغه کتاب «انجیل» چې هغوی ته ورکړی شوی وو؛ هغه هم د «تورات» مصدق دی، او د «انجیل» نوعیت هم په رڼا او هدایت او لارښوونه کې د «تورات» په شان وو، د احکامو او شرائعو په اعتبار هم د دې دواړو په منځ کې لږ څه فرق وو، لکه چې ﴿وَلِأُحِلَّ لَكُم بَعْضَ الَّذِي حُرِّمَ عَلَيْكُمْ﴾ کې اشاره ده، او دا فرق د «تورات» له تصدیق سره څه منافات نه لري، لکه چې نن مونږ عظیم الشأن قرآن منو، او یواځې د هغه د احکامو په تسلیمولو سره لله الحمد د ګردو سماوي کتابونو تصدیق هم کوو؛ چې د الله تعالی له جانبه دي.

وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنجِيلِ بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فِيهِ ۚ وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٤٧﴾

او (فرمایلي وو الله) حکم دې وکړي اهل (عالمان) د انجیل په هغه شي چې نازل کړی (لېږلی) دی الله په هغه (انجیل) کې، او هر چا چې ونه کړ حکم په هغه شي چې نازل کړی دی الله؛ نو دغه کسان هم دوی دي فاسقان.

تفسیر: یا خو دا حکم هغو نصرانیانو ته چې د انجیل د نزول په وخت کې موجود وو؛ ور کړی شوی وو، چې د هغه نقل دلته فرمايي، او کیږي چې هغو نصرانیانو ته به چې د قرآن عظیم د نزول په وخت کې مخاطب وو؛ ویلی شوی وي، هر هغه څه چې الله تعالی په «انجیل» کې نازل کړي دي، سم له هغه سره دې عادلانه حکم وکړي ! يعني د هغو پخوا ویلو په پټولو یا په لغوو او مهملو تأویلاتو او بدلولو سره دې کوښښ نه کوي ! چې په «انجیل» کې د آخر الزمان او مقدس رسول صلی الله علیه وسلم «فارقلیط» په نسبت د مسیح علیه السلام له ژبې ویلي شوي دي، دا به د الله تعالی سخته نافرماني وي، چې د هغه جلیل هادي او لوی مصلح په نسبت چې مسیح علیه السلام داسې فرمایلې دي: «کله چې هغه حق روح راشي، نو تاسې ته به ربښتینې ګردې لارې دروښيي»، نو تاسې د هغه تکذیب ته ملاوې مه تړئ ! او ابدي خُسران مه قبلوئ، آیا د مسیح علیه السلام او د هغه د الله جل جلاله د حکم منلو معنی هم دا ده؟ (له سره نه ده ! او ځینې مفسرین وايي چې: دغه امر د «انجیل» له نسخې څخه پخوا وو).

وَأَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ ٱلْكِتَٰبِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ

او نازل کړی (لېږلی) دی مونږ تاته (ای محمده !) کتاب (قرآن) په حقه سره چې مصدّق (حق ګڼونکی) دی د هغه چې (نازل شوی دی) مخکې له ده نه له کتابونو څخه او ساتونکی دی پر (مضامینو د) هغه (يعني شاهد دی په حقانیت د جنس د هغه کتاب).

تفسیر: د «مهیمن» معنی داسې بیان کړی شوې ده: أمین، غالب، حاکم، محافظ او ساتونکی، او د هرې معنی په اعتبار چې وي، د قرآنکریم «مهیمن» توب د سابقه وو کتابونو لپاره صحیح دی، د الله تعالی هغه امانت چې په تورات، انجیل او نـورو آسماني کتابونو کې په ودیعت ایښی شوی وو؛ هغه له زوائدو سره په قرآن کې محفوظ دی، چې په هغه کې هیڅ خیانت نه دی شوی، او هغه ځنې فرعي شیان چې په هغو کتابونو کې په هغې زمانې یا د هغو مخصوصو مخاطبینو لپاره حسب الحال وو؛ هغـه د پاك قرآن له خوا منسوخ شو، او د هغو د ناتمامو حقائقو تکمیل يې وفرمایه، او له هغې برخې څخه یې چې د دې زمانې په اعتبار غیر مهم ووو؛ منصرف شو.

فَٱحْكُم بَيْنَهُم بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ

نو حکم کوه (ای محمده !) په منځ د دغو (کتابیانو هم که تاته راغلل) په هغه وحی چې لېږلی دی الله (تاته).

تفسیر: د یهودانو په منځ کې څه جګړه سره پېښه شوې وه، یوه ډله یې (چې په هغې کې لوی لوی مشهور علماء او مقتدیان شامل وو) د محمد صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضره شوه، او د هغې جګړې فیصله یې وغوښته، او دا یې هم وویل چې: تاسې ته ښکاره ده، چې ګرد یهوان ځمونږ په واك او اختیار کې دي، که تاسې خپله فیصله سم ځمونږ له غوښتنې سره وکړه؛ نو مونږ ګرد مسلمانیږو، رسول أکرم صلی الله علیه وسلم دا رشوتي اسلام ونه مانه، او د دوی له دغې غوښتنې څخه یې صاف انکار وفرمایه، نو په دې مناسبت (او د دې نظریې په تأیید) دا آیت نازل شو (ابن کثیر).

وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ ٱلْحَقِّ

او مه کوه متابعت د خواهشاتو د دوی (او مه اوړه) له هغه شي څخه چې راغلی دی تاته له حق څخه.

تفسیر: هغه کسان چې دا راز آیتونه د نبي صلی الله علیه وسلم د عصمت له شان څخه مخالف تصور کوي؛ ډېر ناپوه او قاصر الفهم دي:

۱ - له یوه شي څخه د چا منع کېدل د دې خبرې دلیل نشي کېدی، چې د هغه شي مرتکب کېدل غواړي چې ورڅخه منع شوی وی.

۲ - د انبیاوو «علیهم الصلاة و السلام» له معصومیت څخه مطلب دا دی، چې له دوی څخه د الله تعالی معصیت نه صادرېږي، یعنې هر کار باندې چې وپوهېږي هغه د الله جل جلاله خوښ نه دی؛ هغه نه کوي، او که اتفاقا کوم وخت په هېره او خطا یا د رایې او اجتهاد په غلطی سره د راجح او افضل په ځای مرجوح او مفضول اختیار کړي، یا غیر مرضي؛ مرضي وګڼي، او پرې عمل وکړي، چې هغه ته اصطلاحا (زلت «لغزش او ښویدنه» وایي)، نو داسې واقعات د عصمت له مسئلې سره منافي نه دي، لکه چې د آدم علیه السلام او دځینو نورو انبیاوو «علیهم الصلاة و السلام» واقعات د دې قضیې شاهد دي، د دې حقیقت له پوهېدلو څخه وروسته د ﴿وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ﴾ او ﴿وَاحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ اللَّهُ إِلَيْكَ﴾ او د دې په شان د نورو آیتونو د مطلب په پوهېدلو کې هیڅ قسم تردد او اندېښنه نه پاتې کېږي.

لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا

هر چا ته مقرر کړی مونږ له تاسې (ای امتونو !) یو شریعت (اصول) او لاره روښانه.

تفسیر: یعنې الله تعالی د هر أمت لپاره د دوی له احوالو او استعدادونو سره مناسب او جلا دستور او د کار طریقه مقرره کړېده، او سره له دې ګرد انبیاء او ملل په هغو دیني آسماني اصولو او کلي مقاصدو کې چې پرې د ابدي نجات مدار دی؛ یو له بل سره متحد او یو د بل مصدّق دي.

وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِى مَآ ءَاتَىٰكُمْ

او که اراده فرمایلې وای الله نو خامخا به یې ګرځولي وئ تاسې امت یو (متفق په یو دین)، او مګر (یې بېل بېل کړئ) ددی لپاره چې وازمویي تاسې په هغه کې چې تاسې ته یې درکړی دی (له مختلفو شرائعو چې مطیع او عاصي سره بېل کړي).

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَٰتِ

پس وړاندې شئ تاسې یو تر بله نېکیو ته (او د فضائلو په اکتساب او له رذائلو څخه په اجتناب کې تلوار کوئ !).

تفسیر: یعنې د شرائعو د اختلاف له لیدلو څخه په قیل او قال، جنګ او جنجال او کړو بحثونو کې مه لوېږئ ! او وخت مه ضایع کوئ ! او د وصول الی الله د اراده کوونکو عملي ژوندون د تعقیب لپاره منډې ووهئ ! او د هغه عقائدو او اعمالو د محاسنو او د ښېګڼو (فائدو) په اخیستلو کې چالاکي ښکاره کړئ ! چې د آسماني شریعت له خوا تاسې ته درووړاندې کړی شوي دي.

إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿۴۸﴾

(خاص) طرف د الله ته بېرته ورتله دي ستاسې د ټولو، نو خبر به کړي تاسې (په قیامت کې) په هغه (امر د دین) چې وئ تاسې چې په هغه کې به مو اختلاف کاوه.

وَاَنِ احۡكُمۡ بَيۡنَهُمۡ بِمَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعۡ اَهۡوَآءَهُمۡ وَاحۡذَرۡهُمۡ اَنۡ يَّفۡتِنُوۡكَ عَنۡۢ بَعۡضِ مَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ اِلَيۡكَ

او (ته لېږلی یې مونږ او دغه حکم مو فرمایلی دی تاته) چې حکم کوه ! په منځ د دوی کې په هغه شي چې نازل کړی (لېږلی) دی الله، او مه کوه متابعت د خواهشاتو د دوی، او ویره کوه ! (ځان ساته) له دوی نه، چې وا (نه) اړوي (ونه ګرځوي) تا له ځینې هغه شي څخه چې نازل کړی (لېږلی) دی الله تاته (ای محمده !).

**تفسیر:** یعنې یو تر بله په اختلافاتو کې که څه هم ټوله دنیا سره لاس او ګریوان وي، خو تاسې ته هم دا حکم دی چې سم له ﴿مَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ﴾ سره حکم وکړئ ! او د هیچا د ویلو او د اورولو هیڅ پروا مه کوئ.

فَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاعۡلَمۡ اَنَّمَا يُرِيۡدُ اللّٰهُ اَنۡ يُّصِيۡبَهُمۡ بِبَعۡضِ ذُنُوۡبِهِمۡ

نو که وګرځېدل دوی (له نازل شوو حکمونو) پس پوه شه (ته ای محمده !) چې بېشکه هم دا خبره ده چې اراده لري الله چې ورسوي دوی ته (سزا په دنیا کې) په سبب د ځینو ګناهونو د دوی.

**تفسیر:** پوره سزا به په قیامت کې مومي، لیکن لږ څه سزا دلته په دنیا کې هم مجرم ته ورکوله کیږي، تر څو نورو لیدونکو ته هم له هغې ځنې یو قسم تنبیه ورحاصله شي.

وَاِنَّ كَثِيۡرًا مِّنَ النَّاسِ لَفٰسِقُوۡنَ ﴿٤٩﴾

او بېشکه ډېر له خلقو څخه خامخا فاسقان دي (د الله د اطاعت څخه متمردین دي).

تفسیر: یعنې تاسې د خلقو د اعراض او انحراف ځنې ډېر مه خپه کېږئ، په دنیا کې تل فرمانبردار بندګان لږ وي: ﴿وَمَآ اَكۡثَرُ النَّاسِ وَلَوۡ حَرَصۡتَ بِمُؤۡمِنِيۡنَ﴾ (۱۳ جزء د یوسف سورت (۱۱) رکوع (۱۰۳) آیت).

اَفَحُكۡمَ الۡجَاهِلِيَّةِ يَبۡغُوۡنَ ؕ وَمَنۡ اَحۡسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكۡمًا لِّقَوۡمٍ يُّوۡقِنُوۡنَ ﴿٥٠﴾

آیا پس حکم د جاهلیت غواړي دوی؟ (او د الله له حکمونو ځنګ کوي) او څوك ډېر ښه دي له الله څخه له جهته د حکم هغه قوم ته چې یقین لري (په الله یعنې هیڅوك نه دي).

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې د الله تعالی په مالکیت او شاهنشاهۍ او کامل رحمت او محیط علم باندې کامل یقین لري؛ د دوی په نزد په دنیا کې د هیچا حکم د الله تعالی د حکم په مقابل کې د التفات وړ نشي کېدی، نو بیا ولې دا خلق د الله تعالی د احکامو د رڼا له راتللو څخه وروسته د ظنونو، اهواؤو، آراؤو، کفر، او جاهلیت د تیارو په لوري تلل خوښوي؟.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا لَا تَتَّخِذُوا الۡيَهُوۡدَ وَالنَّصٰرٰۤى اَوۡلِيَآءَ ؔ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو) مه نیسئ تاسې یهودیان او نصرانیان دوستان ! (چې له دوی سره موالات او مودت وکړئ !).

تفسیر: «أولياء» د ولي جمع ده، «ولي» دوست ته هم وايي، د «قريب، ناصر، مدد گار» په معنى هم راځي، مقصد دا دی چې مسلمانان له یهودو او نصاراوو بلکه له ګردو کفارو سره (لکه چې په (۵) جزء د النساء سورت په (۲۱) رکوع (۱۴۴) آیت کې تصریح شوې وه چې مسلمانان دې له کفارو سره) دوستانه تعلقات نه قائموي، په دغه موقع کې دې دا ملحوظ وي، چې موالات، مروءت، مصالحت، حسن سلوک، مصالحت، رواداري، عدل او انصاف دا ګرد شیان سره بېل بېل دي، د اسلام اهل که مصلحت وګوري، نو له هر کافر سره مشروع صلح، عهد او پیمان تړلی شي: ﴿وَإِن جَنَحُوا۟ لِلسَّلْمِ فَٱجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ﴾ (۱۰ جزء د أنفال سورت ۸ رکوع، ۶۱ آیت).

د عدل او انصاف حکم لکه چې له ټېرو آیتونو ښخه معلوم شوی دی، د مسلم او کافر بلکه د بشر د هر فرد په حق کې لازم دی، دمروءت، حسن سلوک او د رواداري معامله له هغو کفارو سره کېدی شي، چې د اسلامي جماعت په مقابل کې د عناد او دښمنۍ مظاهره ونه کړي، لکه چې د «الممتحنه» په سورت کې په همدې خبره تصریح شوې ده، پاتې شو «موالات» یعني دوستانه، اعتماد، او یو له بل سره د وروروګلوۍ مرسته، مدد، او معاونت؛ نو هیڅ یو مسلمان حق نه لري، چې دغسې تعلقات له کوم غیر مسلم سره قائم کړي، ـ هو ! د صوري موالاتو چې تر ﴿إِلَّآ أَن تَتَّقُوا۟ مِنْهُمْ تُقَىٰةً﴾ لاندې داخل دي، او عمومي تعاون اجازه شته، چې ترې د اسلام او مسلمانانو په وضعیت او طرز عمل کوم خراب اثر نه لوېږي، له ځینو راشدو خلیفګانو ښخه چې په دې مورد کې فوق العاده تشدید او تضییق منقول دی؛ هغه دې محض په سد ذرائع او مزید احتیاط مبني وګڼل شي !.

بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ

(دوی یو تر بله) ځیني دوستان دي د ځینو نورو (ځکه چې ټول سره په کفر کې شریک دي او ګرد سره تاسې ته متفق دي).

وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ

او هر چا چې دوستي وکړه له دوی سره له تاسې ځنې؛ نو بېشکه چې دی له همدوی ځنې دی (نو مؤمنان دې ځان وساتي له دوستۍ د کفارو).

تفسیر: یعنې د هم دوی په ډله کې شامل دي، دا آیتونه د رئیس المنافقین «عبد الله بن أبيّ» باره کې نازل شوي دي، د ده تعلقات له یهودانو سره زیات دوستانه وو، د ده داسې ګمان وو، که پر مسلمانانو باندې کومه پېښه یا ربړ (تکلیف) واقع شي، او محمدي جماعت مغلوب شي، نو له یهودانو سره به ځمونږ دا دوستي په ښه راشي، د همدې واقعې په لوري په پخواني آیت کې اشاره وشوه.

نو في الحقیقت له یهودانو سره د منافقانو د موالات اصلي منشأ همدا وه، چې یهودان د اسلامي جماعت مقابل او د اسلامي مذهب ډېر بد دښمنان وو، ظاهره ده: هر هغه څوک چې له یهودو او نصاراوو یا له کفارو یا له بل کوم مشرک جماعت سره په دې نیت او حیثیت موالات وکړي، چې هغه د اسلام دښمنان وي؛ نو د هغه په کفر کې هیڅ شبهه نشته، په منافقانو کې ځینې نور کسان هم وو، چې هغوی په «أحد» کې کله چې دجنګ وضعیت بدل شو، او د حرب فضاء یې مکدره او خړه پړه ولیده، داسې ویناوې یې کولې، چې اوس به مونږ له فلاني یهودي او فلاني نصراني سره دوستي او ملګرتیا کوو، او که ضرورت پېښ شو، د هغو په دین کې به هم داخلیږو، نو د دا رنګ خلقو په نسبت هم د ﴿وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ﴾ ظاهري مدلول علانیه صادقیږي.

پاتې شول هغه مسلمانان چې له داسې نیت او منشأ څخه پاک وي، او له یهودانو یا نصرانیانو سره خپل دوستانه تعلقات قائموي، نو د دوی په نسبت هم قوي خطره موجوده ده، چې دوی د کفارو له ډېرې ناستې ولاړې او اختلاط نه متأثر کیږي، او ورو ورو به د دوی مذهب اختیاروي، یا لږ تر لږه د کفر له شرکیه شعائرو او رسومو څخه دوی ته کراهت او نفرت نه پاتې کیږي، نو په دې اعتبار د ﴿فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ﴾ اطلاق پر دوی باندې هم کېدی شي، لکه چې د (المرء مع من أحب) حدیث د همدې مضمون په لوري اشاره کوي.

إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾

بېشکه الله هدایت نه کوي قوم ظالمانو ته (چې ظلم کوي په ځانونو خپلو په دوستۍ کولو د کفارو سره).

فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ

نو وبه وینې ته هغه کسان چې په زړونو د دوی کې مرض (رنځ د نفاق) دی؛ چې ځغلي به په (دوستۍ د) دوی کې، وایي به دوی (په عذر کې چې): ویرېږو له دې نه چې وبه رسیږي مونږ ته کومه حادثه.

تفسیر: دا همغه کسان دي چې د دوی په زړونو کې د شک او نفاق مرض دی، او د الله تعالی پر وعدو باندې اعتماد او د مسلمانانو پر حقانیت یقین نه لري، نو ځکه په منډو منډو ځي، او د کافرانو په غېږو کې پناه نیسي، تر څو د موهومې غلبې په وخت کې د فتحې له ثمراتو ځنې متمتع شي، او د دوی په زعم کې له هغو آفاتو او ګردشونو څخه چې پر اسلامي جماعت راتلونکي دي؛ محفوظ پاتې شي.

د ﴿نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ﴾ معنی همدا ده، چې د دوی په زړونو کې مکنونه وه، لیکن همدا د ﴿نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ﴾ الفاظ کله چې د محمد صلی الله علیه وسلم او مخلصو مسلمانانو په مخ کې له یهودانو سره د دوستانه تعلقاتو لرلو لپاره ویل، نو د زمانې د ګردش مطلب به یې معذرتاً داسې ظاهراوه، چې یهودان څمونږ بیپاریان او معامله داران دي، مونږ له دوی څخه قرض او پور آخلو، که مصیبت یا قحط یا بله کومه پېښه راشي؛ نو دوی د همدې دوستانه تعلقاتو له امله (وجې) څمونږ په ښه او کار راځي، او د اړتیا (احتیاج) په وخت کې څمونږ لاس نیسي»، د همدې خیالاتو ځواب وروسته له دې ورکاوه کیږي.

فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِىَ بِٱلْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِۦ فَيُصْبِحُوا۟ عَلَىٰ مَآ أَسَرُّوا۟ فِىٓ أَنفُسِهِمْ نَٰدِمِينَ ﴿٥٢﴾

نو نژدې ده چې الله به راولی برۍ او فتح (د رسول خپل په تقویت د اسلام سره) یا (به راوړي بل) یو حکم له خپل جانبه (په اظهار د حال د منافقینو)؛ نو وبه ګرځي دوی په هغه شي چې پټ کړی دی دوی په نفسونو خپلو کې (له شک او دوستۍ د کفارو) پښېمانه.

تفسیر: یعنې هغه وخت نژدې دی چې الله تعالی خپل نبي صلی الله علیه وسلم ته قاطعه فتوحات او څرګند برۍ عطا کړي، او مکې معظمې ته چې د ګردو عربو یو منلی شوی مرکز وو، په فاتحانه صورت سره ننوځي، یا ما سوا له دې په خپل قدرت او حکم سره څه نور امور ور د مخه کړي؛ چې د هغو امورو له لیدلو څخه د منافقانو دا ګرد باطل توقعات خاتمه ومومي، او دوی ته دا ورڅرګند شي، چې د اسلام له دښمنانو سره د موالاتو او دوستۍ نتیجه بې له دنیوي ذلت او رسوایي او اخروي دردناک عذاب څخه بل هیڅ شی نشته، کله چې د فضیحت او خُسران دا نتائج ورپېښ شي، نو هلته به بې له افسوسه او ارمانه بل هیڅ شی په لاس نه ورځي.

وَيَقُولُ الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۚ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ
فَأَصْبَحُوا خَاسِرِينَ ﴿٥٣﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ
وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ
لَائِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٥٤﴾

او وايي به هغه کسان چې مؤمنان دي (له تعجبه) آيا دا همغه کسان دي چې قسمونه کول دوی په الله سخت قسمونه خپل چې بېشکه دوی خامخا له تاسي سره دي (په دين کې، نو فرمايي الله): باطل شول عملونه د دوی؛ نو وګرځېدل دوی زيانکاران. ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو!) هر څوک چې مرتد شو (وګرځېد) له تاسي نه له دين خپل څخه؛ نو عنقريب به راولي الله داسي يو قوم چې محبت کوي (الله) له هغوی سره، او محبت کوي دوی له الله سره، متواضع او مهربان به وي پر مؤمنانو، غالب زبردست به وي پر کافرانو باندي، جهاد به کوي دوی په لاره د الله کې (لپاره د ترقۍ د دين) او نه به ويرېږي دوی له ملامتيا د هيڅ ملامت کوونکي، دا (مذکوره صفات) فضل د الله دی، ورکوي يې هغه چا ته چې اراده وکړي، او الله پراخ دی (فضل، رحمت، احسان د ده) ښه عالم (خبردار په ټولو احوالو).

تفسير: د انسان لوی سعادت او برۍ او د الله جل جلاله فضل دا دی چې دی په خپله د فتنې په وخت کې د حق پر لاره ثابت قدم پاتې شي، او په دې فکر کې وي، چې نور مؤمنان هم له هلاکته وژغوري (وساتي)، هغو بندګانو ته چې د پاک الله اراده وي، له دې اعلی سعادت او لوی فضل څخني وافره برخه ورکوي، د ده فضل غير محدود دی، او هغه عليم او خبير ذات ته ښه معلوم دي، چې کوم يو بنده د هغه اهل او مستحق دی.

تنبيه: د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات په تقريب کې د دې آيت د دغې پخوا وينا په تصديق د عربو درې طائفې مرتدې شوې:

١ - بني أسد (د طليحة بن خويلد) قوم چې د پيغمبرۍ دعوی يې کړې وه، او خالد بن وليد رضي الله تعالی عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم له جانبه د دوی په جهاد مأمور شو، چې طليحه ترې شام ته وتښتېد، او بيا يې اسلام راوړ.

٢ - بني مُدلج د يمني (الأسود العَنْسي) قوم چې ده هم د پيغمبرۍ دعوه کړې وه، او پر تمام (يمن) متصرف شو، بيا د نجاشي د خوريي (فيروز الديلمي) په لاس د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات په شپه کې ووژلی شو.

٣ - بني حنيفه د (مُسيلمة الکذاب) قوم چې ده هم د پيغمبرۍ دعوه کړې وه، بيا دې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وفاته وروسته د (صديق أکبر) په خلافت کې د وحشيّ بن حرب (د أمير حمزه رضي الله تعالی عنه د قاتل) په غشي او د (عبد الله بن زيد الأنصاري) په تورې ووژلی شو، او د صديق أکبر رضي الله تعالی عنه په عهد کې (٧) طائفې نورې هم مرتدې شوې:

(١) فزاره. (٢) کينده. (٣) غطفان. (۴) بنو بکره. (٥) بنو يربوع. (٦) بنو سُليم. (٧) د بنو تميم څيني سړي، او د عمر فاروق رضي الله تعالی عنه په عهد کې غسّان د (جبلة بن الأيهم) قوم نصرانيان شول، او (شام) ته وتښتېدل.

إِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُونَ ﴿٥٥﴾

بېشکه همدا خبره ده چې دوست ستاسې (خاص) الله او رسول د ده دی، او هغه کسان چې مؤمنان دي، (مؤمنان) هغه کسان دي چې قائموي (سم ادا کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ (یا) (صفت کوو د) هغو کسانو چې قائموي (سم ادا کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکوي دوی زکات، او هم دوی رکوع (عاجزي) کوونکي دي (په لمونځ او زکات خپل کې) (یا) او ورکوي دوی زکات (خیرات) حال دا چې دوی په رکوع (د نفلي لمونځ) ولاړ وي.

تفسیر: په دې آیت کې دا ښوولي شوي دي؛ چې د دوی اصلي رفیق ما سوا له الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم او مخلصو مسلمانانو څخه بل هیڅوک نشي کېدی.

وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَالَّذِينَ اٰمَنُوا فَإِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُونَ ﴿٥٦﴾

او هر څوک چې دوستي کوي له الله سره، او له رسول د ده سره، او له هغو کسانو سره چې مؤمنان دي؛ نو بېشکه چې ډله د الله هم دوی دي غالبان (پر ټولو).

تفسیر: په خصوصیت سره دغه آیت د عُباده ابن صامت رضي الله تعالی عنه په صفت کې نازل شوی دی، څکه د ده تعلقات د (بني قینقاع) له یهودانو سره ډېر ښه وو، مګر ده د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه و سلم د موالاتو او د مسلمانانو د رفاقت له امله (وجې) له هغوی سره خپل تعلقات پرې کړل، رضي الله تعالی عنه.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَكُمْ هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ وَاتَّقُوا اللّٰهَ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) مه نیسئ ! هغه کسان چې نیولي دي دوی دین ستاسې مسخره او لوبې؛ له هغو کسانو څخه چې ورکړی شوی دی دوی ته کتاب پخوا له تاسې، او (مه نیسئ) کافران دوستان، او وویرېږئ له الله څخه (په ترک د دوستی د کفارو کې) که یئ تاسې مؤمنان (په رښتیا سره).

تفسیر: دلته له کفارو څنې مشرکین مراد دي، لکه چې له عطف څنې ظاهر دی.

وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُونَ ﴿٥٨﴾

او کله چې غږ کوئ تاسې (او خلق رابولئ) لمانځه ته (یعنې اذان کوئ !) نو نیسي دوی هغه (لمونځ یا اذان) مسخرې او لوبې (او ورپورې خاندي)، دا (مسخرې) په سبب د دې دي؛ چې دوی یو قوم دی چې هیڅ عقل نه لري.

تفسیر: یعنې کله چې اذان کوئ؛ نو دوی سوځي، او له ډېره قهره پرې مسخرې کوي، چې دا تمسخر د دوی د لوی حماقت او بې عقلی دلیل دی.

قُلْ يَٰٓأَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ هَلْ تَنقِمُونَ مِنَّآ إِلَّآ أَنْ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلُ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَٰسِقُونَ ﴿۵۹﴾

ووايه (اى محمده !) چې اى اهل كتابو ! آيا عيب ګڼئ تاسې له مونږه (او كينه كوئ يعنې نه كوئ) مګر په دې سبب چې ايمان راوړى دى، مونږ پر الله او پرهغه كتاب چې لېږلى شوى دى مونږ ته، او پر هغو (كتابونو) چې ليږلي شوي دي پخوا (له دې نه) او (بل په دې سبب) چې بېشكه زيات له تاسې فاسقان دي.

تفسير: يعنې استهزاء كوونكي سره له دې چې د كتاب او په شريعتونو باندې د پوهې دعوى كوي؛ دوى دې لږ څه فكر وكړي ! او د انصاف له مخې دې راوښيي ! چې دوى له مسلمانانو سره دومره ضد او كينه ولې كوي؟ بې له دې چې مونږ د واحد لا شريك له «الله» او د ده پر ټولو منزلو كتابونو او د ده پر ګردو لېږل شويو رسولانو باندې په صدق سره ايمان لرو، او بالمقابل د استهزاء كوونكو دا حال دى؛ چې نه د الله تعالى په ربنتيا او صحيح توحيد قائم دي، او نه د ګردو انبياوو عليهم السلام او رسولانو عليهم السلام تصديق او تكريم كوي، نو اوس همدا تاسې د انصاف له مخې ووايئ: چې د دغو د الله تعالى د منتها درجې نافرمانانو د الله تعالى پر فرمان منونكو بندګانو باندې خندل، ملنډې وهل، طعن او تشنيع به څرنګه وي؟ او تر كومه ځايه پورې دوى ته دا حق حاصل دى؟ .

قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكَ مَثُوبَةً عِندَ ٱللَّهِ ۚ مَن لَّعَنَهُ ٱللَّهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ ٱلْقِرَدَةَ وَٱلْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ ٱلطَّٰغُوتَ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ عَن سَوَآءِ ٱلسَّبِيلِ ﴿۶۰﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) آيا خبر كړم تاسې په (هغه چا چې) ډېر بد (عيب لري) له دې (چې تاسو يې څمونږ عيب ګڼئ) له جهته د جزا په نزد د الله (ډېر بد) هغه څوك دى؛ چې لعنت كړى دى پر هغه الله او غضب يې كړى دى پر هغه، او ګرځولي يې دي له ځينو د دوى څخه بيزوګان او (له ځينو د دوى څخه) خنزيران او (هغه كسان دي چې) بندګي يې كړېده د شيطان، همدا (ملعونان) ډېر بد دي له جهته د ځاى (چې دوزخ دى) او ډېر ګمراه دي له سمې صافې لارې (د حق دين څخه).

تفسير: يعنې كه پر «ايمان بالله» استقامت او په هغه شي د زړه تصديق چې د الله تعالى له لوري په هره زمانه كې نازل شوى دى؛ ستاسې په زعم كې د مسلمانانو ډېر لوى جرم او زښته (ډېره) لويه ګناه ده، او له دې لامله تاسې دوى د طعن او ملامتى مورد ګرځوئ؛ نو راځئ چې زه تاسې ته د داسې يو قوم پته او سراغ دركړم، چې په خپل شرارت او ګندګى كې بدترين د مخلوقاتو دي، او د الله د لعنت او د غضب اثر نن هم پر دوى باندې ظاهره او ښكاره دى، او د دوى ډېر افراد د خپلو مكاريو او بېحياييو او د دنيوي حرص په سزا، بيزوګان او بد ځناوران ګرځېدلي وو، او د الله جل جلاله له بندګى څنې وتلي د شيطان غلامي يې غوره كړې وه، كه انصاف وكړئ شئ؛ نو په اصلي معنى سره بدترين د مخلوقاتو او ګمراه قوم هم دوى دي، او همدوى ستاسې د طعن او استهزاء مستحق كېدى شي.

وَإِذَا جَآءُوكُمْ قَالُوٓا۟ ءَامَنَّا وَقَد دَّخَلُوا۟ بِٱلْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا۟ بِهِۦ ۚ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا۟ يَكْتُمُونَ ﴿۶۱﴾

او كله چې راشي (دا منافقان) تاسې ته وايي دوى چې ايمان راوړى دى مونږ، حال دا چې په تحقيق ننوتلي دي دوى (ستاسې په مجلس كې) په كفر سره، او دوى په تحقيق وتلي هم دي

(ستاسي له مجلس څخه) په کفر سره، او الله ښه عالم (ښه خبر) دی په هغه چې وو دوی چې پټول (به يې له نفاقه).

تفسير: دلته د ځينو هغو مخصوصو استهزاء کوونکو افرادو بيان دی، چې په غياب کې به يې پر اسلامي مذهب طعن او تشنيع او پر مسلمانانو به يې مسخرې کولې، ليکن کله به يې چې له نبي کريم صلى الله عليه وسلم يا له مخلصو مسلمانانو سره ليدل، نو د نفاق له لارې څخه به يې خپل ځان مسلمان ښکاره کولو، حال دا چې له اوله تر آخره پورې به د يوې شيبې له مخې هم د دوی تعلق له اسلامه سره نه وو، او نه به د رسول الله صلى الله عليه وسلم زباني وعظ او تذکير پر دوی څه اثر غورځاوه.

نو آيا دوی د ايمان او د اسلام په تش لفظ ويلو سره (معاذ الله) الله تېرايستی شي؟ که د هغه عالم الغيب والشهاده په نسبت چې پر هر قسم زړه او دهغی په پټو اسرارو مطلع دی، د دوی ګمان داسې وي، چې د ده خوښي تش په لفظي ايمان او يوائې د خولې په وينا سره حاصلولی شو؛ نو له دې ځنې پورته بل کوم يو حرکت د استهزاء او تمسخر وړ (لائق) دی؟ ګواکې له دې ځايه د يهودو او نصاراوو د هغو خندوونکو افعالو او حرکاتو بيان شروع شو، چې د هغو له تنبيه څخه وروسته د مسلمانانو د استهزاء کولو په ځای، هغوی پخپله د استهزاء وړ (لايق) ګرځي، په وروستنيو آيتونو کې هم د همدې مضمون تتميم او تکميل دی.

وَتَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُونَ فِي الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٦٢﴾

او ته به وينې ډېر له دغو (منافقانو) څخه چې منډې به وهي په ګناه کې (چې حصول د حرامو يا دروغ ويل دي) او په ظلم کې (چې زيادت دی په معاصيو کې) او په خوراک د دوی د حرامو لره (لکه رشوت) خامخا بد دی هغه کار چې وو دوی چې کولو يې.

تفسير: غالبا له «اثم» څخه لازمي او له «عدوان» څخه متعدي ګناه مراد ده، يعنې د دې خلقو حال دا دی چې په ډېر شوق او رغبت سره د هر قسم ګناهونو په لوري منډې وهي، اعم له دې چې د هغو اثر د دوی په ذات پورې محدود پاتې شي، يا نورو ته هم وروړسيږي، د هغو خلقو چې اخلاقي حالت يې داسې سپک او وران وي، او په حرام خوړلو کې د دوی عمل داسې وي، نو د دوی په خرابۍ کې څه شبهه پاتې نه ده، دا د دوی د عوامو حال او خوی وو، وروسته له دې نه د دوی د خواصو بيان شوی دی.

لَوْلَا يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ عَن قَوْلِهِمُ الْإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿٦٣﴾

ولې نه منع کوي دوی رباني عارفان او عالمان له ويلو د دوی د ګناه (د دروغو خبرو) او له خوړلو د دوی د حرامو (لکه رشوت او سود)، خامخا ډېر بد دی هغه کار چې وو دوی چې کولو يې (چې هغه سکوت دی له نهي د منکر نه).

تفسير: هر کله چې الله تعالى کوم قوم تباه کوي، نو د هغو عوام په ګناهونو او نافرمانيو کې ډوبيږي، او د هغو خواص يعنې علماء او مشايخ ګونګي شيطانان ګرځي، د بني اسرائيلو هم دا حال شو، چې عوام يې عموما په دنيوي لذائذو او شهواتو کې لګيا او د الله تعالى عظمت او جلال او د ده قوانين او احکام يې هېر کړل، او هغه کسان چې علماء او مشايخ ګڼل کېدل، د «أمر بالمعروف» او «نهي عن المنکر» فريضه يې پرېښوده، ځکه چې د دنيا په حرص او د شهوت

په اتباع کې دوی له عوامو ځنې هم وړاندې تللي وو، له مخلوق څخه خوف یا د دنیا طمع د حقاني غږ د پورته کولو مانع وګرځېدل.

﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ﴾

او وایي یهودیان لاس د الله بند کړی شوی دی (یعني مونږ ته هیڅ نه راکوي، او روزي یې راباندې تنګه کړې ده).

تفسیر: یعنې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د بعثت په وخت کې د کتابیانو زړونه د دوی د شرارت، کفر، طغیان، بدکاریو، حرام خوړلو او د نورو خرابو کارونو له ممارسته دومره مسخ شوی وو؛ چې د الله تعالی په دربار کې له سپین سترګی او ګستاخۍ څخه هم هیڅ نه ویرېدل، د پاک الله مرتبه د دوی په نزد د یوه معمولي انسان له مقام څخه څه زیاته نه وه، د حق تعالی په دربار کې به یې بې تکلفه داسې واهي او خوشي چټي (بېکاره) خبرې کولې، چې د هغو له اورېدلو څخه د هر چا ویښتان جګ (نېغ) درېدل.

کله به یې ویل: ﴿إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ وَنَحْنُ أَغْنِيَاءُ﴾ «بېشکه الله فقیر دی او مونږ غنیان یو» کله به دا الفاظ د دوی له خولې څخه وتل: ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ﴾ «د الله لاس بند شوی دی» د دوی مراد به یا هغه شی وو چې ﴿إِنَّ اللَّهَ فَقِيرٌ﴾ څخه یې مراداوه، چې معاذ الله الله تعالی فقیر شوی دی، او (استغفر الله) د ده په خزانه کې څه نه دي پاتې، یا به «غلّ الید» کنایه له بخل او امساکه وي، یعنې فقیر شوی خو نه دی، مګر په دې ورځو کې بخیلي او کنسکي (کنجوسي) کوي (العیاذ بالله).

﴿غُلَّتْ أَيْدِيهِمْ وَلُعِنُوا بِمَا قَالُوا بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ يُنْفِقُ كَيْفَ يَشَاءُ﴾

تړلي دې وي (یا تړلی شوي دي) لاسونه د همدوی، او لعنت کړی شوی دی پر دوی په سبب د هغه چې وایي دوی، بلکه دواړه لاسونه د ده غځولي (کشاده) دي، روزي ورکوي (هر چا ته او صرفوي یې) هر رنګه چې اراده وفرمایي.

تفسیر: دا د ښېرا په ډول پخوا ویل یا د دوی د واقعي احوالو څخه خبر ورکول دي، لکه چې واقعي بخل او جبن (یا ذلت او مسکنت) د دوی د خیراتونو استعداد ورک کړی، او د خیر لاسونه یې بیخي بند کړي وو، ﴿بَلْ يَدَاهُ مَبْسُوطَتَانِ﴾ «داسې نه ده، لکه چې دوی وایي، بلکه دواړه لاسونه د ده غځولي او جود یې ډېر او کرم یې له حده تېر دی».

چېرې چې الله تعالی ته «وجه» «یدین» «سمع» «بصر» «کلام» او نور نعتونه ذکر کړی شوي دي، نه ښایي چې سړی تېروځي، داسې توهم وکړي چې (معاذ الله) هغه پاک ذات هم د مخلوقاتو په شان دی، حال دا چې داسی نه دی، بلکه همداسې چې د الله تعالی ذات او وجود بېمثال او بې نظیر او بې ساری وحده لا شریک له دی؛ د ده جل جلاله حیات، علم، او نور ګرد نعتونه او صفتونه هم هیڅ یو نظیر، او مثال نه لري.

خلاصه: همداسې چې د الله تعالی ذات دی؛ همغسې د الله د «وجه، سمع، بصر، ید» او د نورو نعتونو، او صفاتو کیفیت هم د ده د اقدس ذات سره لایق او د ده د اعلی شأن سره وړ دي، او ځمونږ تعبیر او بیان له احاطې څخه بالکل وتلی او وراء الوراء دی: ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ (۲۵ جزء د الشوری سورت ۱۱ آیت ۲ رکوع).

البته د دې ټولو صفاتو معناګانې څرګندې دي، چې د «ید» معنی لاس، د «وجه» معنی مخ، او داسې نور، خو څرنګه چې د الله تعالی د شان سره لایق او مناسب دي، او د کیفیت علم یې یواځې الله ته معلوم دی.

﴿يُنۡفِقُ كَيۡفَ يَشَآءُ﴾ روزي ورکوي هر چا ته او صرفوي يې هر رنګه چې اراده وفرمايي په بالغه حکمت او مصلحت خپل، يعنې په دې باندې هم دی ښه پوهيږي چې « په بالغه حکمت او کامله مصلحت او مطلقې ارادې او مشيئت خپل) په کوم وخت، او په چا، او په څه، او څومره صرف کړه شي؟ کله د امتحان يا اصلاح په غرض يو وفادار بنده په تنګسه او عسرت باندې مبتلا کوي، کله ده ته د وفادارۍ په مقابل کې له اخروي نعمتونو څخه د مخه د دنيوي برکاتو وَرُونه هم خلاصوي.

بالمقابل يوه مجرم او متمرد ته پخوا د آخرت له سزا څخه؛ د تنګسۍ، د ژوند د تنګوالي او د دنيوي نورو مصيبتونو او آفتونو سزا ورکوي، او کله ورته دنيوي ساز او سامان پراخوي، او زيات مهلت ورکوي، چې يا د الله تعالی له احساناتو څخه متأثر او له خپل فسق فجور څنې وشرميږي، يا د خپل شقاوت جام تر څنډو (غاړو) ډک کړي، او د انتهايي سزا مستحق شي، د دې مختلفو احوالو او اغراضو او متنوعو حکمتو په موجوديت کې د کوم سړي د مقبوليت يا د مردوديت فيصله د پاک الله په اطلاع سره يا په خارجي قرائنو يا د احوالو په بناء سره کولی شي، لکه چې د يوه غله لاس پرېکړی شي، يا د ډاکټر له خوا د کوم رنځور لاس پرېکړی شي، د دواړو په نسبت مونږ د خارجي احوالو او قرائنو له مخې پوهېدلی شو؛ چې هغه د سزا په ډول (طريقه) او دغه د دواء په قسم د شفقت او علاج له امله (وجې) پرېکړی شوی دی.

﴿وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرٗا مِّنۡهُم مَّآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ مِن رَّبِّكَ طُغۡيَٰنٗا وَكُفۡرٗاۚ﴾

او خامخا زياتوي هرومرو ډېرو ته له دوی نه هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی تاته له ربه ستا سرکښي او کفر.

تفسير: د دوی د سپين سترګی او ګستاخي ځواب ورکړی شوی دی، ليکن د قرآن کريم له هسې حکيمانه ځوابونو څخه د دې معاندينو او سفهاوو تسکين نه حاصليږي، بلکه د الله تعالی د کلام له اورېدلو څخه دوی په خپل شرارت او انکار لا پسې ټينګار (همېشه والی) او زيادت کوي، که صحي غـذاء د يوه رنځور معدې ته ورسيږي، خو د هغې له سببه د ده مرض لا زيات شي؛ نو دا به د هغې غـذا خرابي او قصور نه وي، بلکه د مريض د مزاج ورانی او خرابی به وي.

﴿كَثِيرٗا﴾ د ﴿وَلَيَزِيدَنَّ﴾ لپاره مفعول دی او پر فاعل باندې چې ﴿مَّآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ﴾؛ مقدم دی.

﴿وَأَلۡقَيۡنَا بَيۡنَهُمُ ٱلۡعَدَٰوَةَ وَٱلۡبَغۡضَآءَ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِۚ﴾

او غورځولی دی مونږ په منځ د دوی کې عدوات (دښمني) او بغض (نفرت) تر ورځې د قيامت پورې.

تفسير: هومره چې د دوی شرارت او انکار ترقي کوي؛ هغومره د اسلام او مسلمانانو پر خلاف سازشونه او پلمې (منصوبې) جوړوي، او د جنګ د اور لګولو لاره تياروي، ليکن د دوی په خپلو منځونو کې هم داسې يو نفاق لوېدلی دی، چې له سره نه ورکيږي، نو له همدې سببه د اسلامي أخوت په خلاف د دوی جنګي تيارۍ برۍ ونه مونده.

﴿كُلَّمَآ أَوۡقَدُواْ نَارٗا لِّلۡحَرۡبِ أَطۡفَأَهَا ٱللَّهُۚ وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادٗاۚ وَٱللَّهُ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُفۡسِدِينَ ٦٤﴾

هر کله چې بلاوه دوی اور لپاره د جنګ (د رسول الله سره نو) مړ کولو به هغه (اور) الله، او سعيه کوي (ځغلي) دوی په ځمکه کې لپاره د فساد اچولو، او الله نه خوښوي فساد کوونکي (نو په سزا يې رسوي).

تفسير: له دې نه معلومه شوه: تر څو په مسلمانانو کې يو له بل سره محبت او أخوت مُستحکم وي، او دوى د رُشد او صلاح په لاره سم رهي (روان) وي، او له فتنې او فساد څخه اجتناب کوي، لکه چې په «اصحابو کرامو رضوان الله تعالى عليهم أجمعين» کې دغه خصلتونه وو، تر هغه وخته پورې د کتابيانو ګرد کوښښونه د دوى په مقابل کې بېکاره ثابتېږي.

وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَأَدْخَلْنَاهُمْ جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٦٥﴾

او که بېشکه اهل کتابو ايمان راوړى وى په (محمد صلى الله عليه وسلم)، او پرهېز يې کړى وى (له معاصيو څخه) نو خامخا لرې کړى به وى مونږ له دوى څنې ګناهونه د دوى، او خامخا ننويستلي به وو مونږ دوى جنتونو د نعمتونو ته (هغه جنتونو ته چې نعمتونه په کې دي).

وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ مِنْ رَبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ أَرْجُلِهِمْ

او که بېشکه دوى درولى وى (احکام د) تورات او انجيل (د احکامو په تعميل سره يې) او هغه (کتاب) چې نازل کړى شوي دي دوى ته له (جانبه د) رب د دوى (د محمد صلى الله عليه وسلم په وسيله) نو خامخا خوړلي به يې (مېوې) له پاسه (د سرونو) خپلو او (غلې) له لاندې د پښو خپلو (د ځمکې نه).

تفسير: يعنې که د قرآنکريم يې (چې له تورات او انجيل څخه وروسته د دوى د تنبيه او هدايت لپاره نازل شوى دى) په عمل سره قائم کړى وى، ځکه چې بې د قرآنکريم له تسليم څخه د «تورات» او د «انجيل» او د ګردو آسماني کتابونو د اقامت مطلب اوس همدا کېدى شي، چې قرآن عظيم او رسول کريم صلى الله عليه وسلم ومني، چې د پخوانيو کتابونو له پېش بينيو او پخوا ويلو سره سم رالېږلى شوى دى، ګواکې د «توارت» او «انجيل» د اقامت حواله يې ورکړه، او تنبيه يې وفرمايله چې که دوى قرآن کريم ونه مني؛ نو د هغه مطلب د ادى چې دوى د خپلو کتابونو له منلو څخه هم منکران شوي دي.

مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُقْتَصِدَةٌ ۖ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴿٦٦﴾

ځينې له دوى نه يو امت دى مقتصد (يوه ډله ده منصفه او ميانه تلونکې)، او ډېر له دوى څخه بد دى هغه کار چې کوي يې دوى.

تفسير: دا هغه معدود افراد دي، چې دوى د فطري سعادت او د اعتدال د لارې د اختيارولو له امله (وجې) د حق غږ ته لبيک ويلى دى، لکه (عبد الله بن سلام) او د حبشې پاچا «نجاشي» او نورو رضي الله عنهم.

يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ ۖ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ ۚ
وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٦٧﴾

اې رسوله (ځما) ورسوه (ته ټول) هغه شى چې نازل کړى شوى دى تاته له (جانبه د) ربه ستا، او که دې ونه رساوه (ټول) نو نه دى رسولى تا هيڅ پيغام د ده، او الله ساتي تا له (شره د) خلقو، بېشکه الله نه ښيي (سمه لاره) قوم کافرانو ته.

تفسير: په تجربې رسېدلې ده، چې انسان د تبليغ د فريضې په اداء کولو کې د څو وجوهاتو له امله (وجې) مقصّر پاتې کيږي، يا خو له ده سره د خپلې فريضې د اهميت کافي احساس او مينه نه وي، يا د خلقو له عمومي مخالفت څخه د

شدید نقصان رسېدلو ، یا کم له کم د ځینو فوائدو د فوت خوف وي، یا د مخاطبینو د عمومي طغیان او تمرد له امله (لکه چې په پخوانیو او وروستنیو آیتونو کې د کتابیانو په نسبت ښوولی شوی دی)، د تبلیغ له مثمر او منتج کېدلو څنې مایوسـي وي، د (۱) په ځـواب کـې: ﴿يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ﴾ تر ﴿فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ﴾ پورې، او د (۲) په ﴿وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ﴾ او د (۳) په ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ﴾ سره ور کړی شوی دی.

یعنې ته خپل فرض اداء کړه ! الله تعالی ستا د ځان، عزت او پت ساتونکی دی، الله تعالی به د ګردې ځمکې د مخ دښمنانو ته هم موقع ور نه کړي، چې ستا په مقابل کې د بري لاره ومومي، باقي هدایت او ضلالت د الله تعالی په لاس کې دی، داسې قوم چې فقط کفر او انکار ته یې خپلې ملاوې تړلي وي، که په سمه لاره رانشي؛ نو ته غم مه کوه ! او مه مأیوسه کېږه ! او خپله دغه مقدسه فریضه مه پرېږده !، ځمونږ نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دې ربّاني هدایاتو او آسماني اصولو سره سم ګرد امت ته د هر وړوکي او لوی شي تبلیغ وفرمایه، او د انساني نوعې خواصو او عوامو ته هره هغه خبره چې هرې طبقې ته لایقه، او د هر چا له استعداده سره موافقه وي؛ بې له زیادته او نقصانه او بې له خوفه او خطره ورونښوده، او ویې رسوَله، او د الله تعالی حُجت یې پر بندګانو تمام کړ، او له وفاته څخه تقریبا دوه نیمې یا درې میاشتې پخوا د «حجة الوداع» په موقع کې چې هلته له (۴۰،۰۰۰) تنو څخه زیات د اسلام خادمانو او د تبلیغ محبّانو اجتماع درلوده، دوی ته «علی رؤوس الأشهاد» اعلان وفرمایه، چې «ای الله ! ته شاهد اوسه ! چې ما (ستا أمانت) ورساوه».

﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ حَتَّىٰ تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ﴾

ووایه (ای محمده !) چې ای کتابیانو ! نه یئ تاسې پر هیڅ شي (له حقه دینه) تر هغه پورې چې قائم کړئ تاسې (ودروئ په عمل سره ګرد احکام د) «تورات» او «انجیل» او هغه (کتاب) چې نازل کړی شوی دی تاسو ته له (لوري د) ربه ستاسې.

تفسیر: یعنې قرآنکریم د ګردو سماوي کتابونو خاتم او مُهیمن دی، په ۶ جزء د المائده سورت په (۴۸) آیت (۷) رکوع کـې د دې آیت تفسیر تېر شوی دی.

﴿وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا ۖ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ۝٦٨﴾

او خامخا زیاتوي هرو مرو (خامخا) ډېرو ته له دوی څخه هغه شی چې نازل کړی (لېږلی) شوی دی تاته له جانبه د رب ستا (یعني چې قرآن زیاتوي دوی ته) سرکښي او کفر، نو مه خپه کېږه (او افسوس مه کوه) پر قوم کافرانو.

تفسیر: یعنې د دې غم او افسوس له کبله (وجې) مه خپه کېږئ ! خپل فرض په امن او اطمئنان سره اداء کوئ !.

﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئُونَ وَالنَّصَارَىٰ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝٦٩﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی (تش په ژبو) او هغه کسان چې یهودیان دي او (فرقه د) ترسایانو او نصرانیانو (د دوی حکم همداسې دی) هر څوک چې ایمان راوړي په الله او په ورځ آخره (چې ورځ د قیامت ده د زړه په صدق سره) او عمل وکړي نېک (عمل)؛ نو نشته (هیڅ قسم) وېره پر دوی باندې او نه به دوی (هیڅکله) خپه کیږي (د اجر په نقصان سره).

**تفسير:** د «ايمان بالله» لاندې دا ګرد (ټول) شيان داخل دي: فرض کړئ! يو سړی د نبوت د روښانو دلائلو د موجوديت سره سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم توهين کوي (او دی د نبوت په دعوی کې دروغجن ګڼي، چې همدا د هغه توهين دی) نو آيا د يوه حکومت د سفير توهين او د سفارت د صافو او صريحو اسنادو تکذيب، د هغه حکومت تکذيب او توهين نه دی؟ همداسې وپوهېږئ! هر هغه څوک چې د يوه رښتين رسول عليه السلام تکذيب کوي، او هغه نه مني؛ دغه في الحقيقت د الله تعالی د هغو صافو او صريحو آثارو او دلائلو تکذيب دی، چې د ده د نبوت د تصديق لپاره يې نازل کړي دي: ﴿فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ﴾ (۷ جزء د الأنعام سورت (۳۳) آيت (۴) رکوع).

آيا د الله تعالی د صريحو آيتونو او ښکاره دلائلو له دروغ ګڼلو څخه وروسته د «ايمان بالله» دعوی پاتې کېدی شي؟ د هغو تفصيلاتو په لوري چې قرآن کريم د «ايمان بالله» او عمل صالح په اجمالي عنوان سره دلته اشاره فرمايلې ده؛ په نورو مواضعو کې هغه په ښه شرح او بسط مذکور دي.

څما په نزد زيات صحيح او قوي قول همدا دی چې: «صابئين» په عراق کې يوه فرقه وه، چې د هغو مذهبي اصول عموما د اشراقي حکماوو او طبيعي فلاسفه وو له اصولو مأخوذ وو، دې خلقو د روحانيانو په نسبت زياته غُلُوّ او ډېره مبالغه کوله، بلکه د هغوی عبادت به يې کاوه، د دوی خيال داسې وو چې: يوازې د مجردو ارواحو او تش د فلکي مدبراتو او نورو په استعانت او استعداد مونږ تر «رب الأربابه» يعنې لوی معبود پورې رسېدی شو، نو څکه مونږ ته ښايي چې په شاقه رياضتونو او د شهواتو په کسر په روح کې تجرد او صفايي پيدا کړو، او له روحاني عالم سره خپله علاقه ټينګه کړو، بيا د دوی په خوشالۍ او لاس نيولو تر الله تعالی پورې رسېدی شو، د انبياوو د اتباع ضرورت نشته، د کواکبو د مدبّره ارواحو او همداسې د نورو روحانياتو په خوشالولو کې به يې له خپله ځانه د هغوی هيکلونه (تصويرونه) جوړول، او د دوی په ارواحو به يې لمونځ، روژه، قرباني او نور شيان کول.

خلاصه دا چې د «حنفاوو» په مقابل کې د «صابئينو» جماعت وو، چې د هغه ډېره لويه حمله پر نبوت او د ده پر لوازمو او خواصو باندې وه، د حنيف ابراهيم عليه السلام د بعثت په وخت کې (د نمرود) قوم صابئُ العقيده وو، چې د دوی په ترديد او ابطال کې د الله تعالی خليل د فداکارۍ او ايثار اظهار وکړ.

لَقَدْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَأَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ رُسُلًا ۖ كُلَّمَا جَاءَهُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَىٰ أَنْفُسُهُمْ فَرِيقًا كَذَّبُوا وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ﴿٧٠﴾

خامخا په تحقيق اخيستې ده مونږ وعده ټينګه له بني اسرائيلو (اولادې د يعقوب) څخه، او ليږلي وو مونږ دغو (بني اسرائيلو) ته رسولان (چې ور ياد کړي دغه عهد او ور بيان کړي شرعي أحکام)، هر کله چې به راغی دوی ته کوم رسول په هغه (شرعي حکم) سره چې نه خوښاوه (هغه شرعي حکم لره) نفسونو د دوی، ځينې رسولان (لکه موسی او عيسی) يې دروغجن وګڼل او ځينې رسولان (لکه يحيی، زکريا) به يې وژل.

وَحَسِبُوا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا وَصَمُّوا ثُمَّ تَابَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِنْهُمْ ۚ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٧١﴾

او ګومان کړی وو دغو (بني اسرائيلو) د دې چې نه به وي (او نه به رسيږي دوی ته) هيڅ فتنه (خرابي د انبياوو په دغه تکذيب او قتل کې)، پس ړانده شول (د حقې لارې له ليدلو څخه)

او کاڼه شول (د حق له اورېدلو څخه) بیا رجوع (په رحمت سره) وکړه الله په دوی باندې، بیا (دوهم ځلي) ړانده او کاڼه شول (د حق له لیدلو او اورېدلو څخه) ډېر له دوی څخې (په انکار سره له محمده)، او الله ښه لیدونکی دی د هغو کارونو (هم) چې کوي (یې) دوی.

**تفسیر:** یعنې بني اسرائیلو پوخ عهد او پیمان مات او له الله تعالی سره یې بد عهدي او غداري وکړه، د ده رسولان یې دروغجنان کړل، او ځینې یې ووژل، دا خو د دوی د «ایمان بالله او صالح عمل» حال وو.

د «ایمان بالیوم الآخر» اندازه یې له دې نه قیاس کړئ ! چې د دومره شدیدو مظالمو او یاغیانه جرائمو له ارتکاب سره سره بیخي هوسا (خوشاله) او بې غمه ناست دي، ګواکې دوی په دې فکر کې هیڅ نه دي، چې دوی د دغو خپلو بدو چارو د سزاوو ګالونکي (برداشت کوونکي) دي، یا د دې ظلم او بغاوت خرابې نتیجې به کله د دوی مخې ته راتلونکې وي.

په همداسې خیالاتو او چرتونو کې د الله تعالی له دلائلو او کلام څخه بیخي ړانده او کاڼه شول، او داسې کارونه یې وکړل، چې د کولو نه وو، تر دې چې ځینې انبیاء علیهم السلام یې قتل او ځینې یې بندیان کړل، آخر الله تعالی پر دوی «بخت نصر» مسلط کړ، بیا د یوې اوږدې مودې څخه وروسته د «پارس» ځینو پاچاهانو دوی د «بخت نصر» د ذلت او رسوایي له قیده خلاص کړل، او له (بابل) څخه یې د (بیت المقدس) په لوري بېرته ولېږل، په دې وخت کې دې خلقو توبه وویسته، او د خپل حال د اصلاح په لوري متوجه شول، او الله تعالی هم د دوی توبه قبوله کړه، لیکن لږ څه موده وروسته بیا دوی په خپلو همغو شرارتونو او بدو چارو لاس پورې کړ، او بیخي ړانده او کاڼه شول، او د زکریا علیه السلام او یحیی علیهما السلام په قتل یې جرائت وکړ، او د عیسی علیه السلام قتل ته هم تیار شول.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ ۖ وَقَالَ ٱلْمَسِيحُ يَـٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ رَبِّى وَرَبَّكُمْ ۖ إِنَّهُۥ مَن يُشْرِكْ بِٱللَّهِ فَقَدْ حَرَّمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِ ٱلْجَنَّةَ وَمَأْوَىٰهُ ٱلنَّارُ ۖ وَمَا لِلظَّـٰلِمِينَ مِنْ أَنصَارٍ ﴿۷۲﴾

خامخا په تحقیق کافران شوي دي هغه کسان چې وایي دوی (له ډېره جهله) چې بېشکه الله همدغه مسیح ځوی د مریمې دی، او ویل به مسیح چې: ای بني اسرائیلو (اولادې د یعقوبه !) عبادت کوئ تاسې د (یواځې هغه) الله چې رب ځما او رب ستاسې دی، بېشکه شان دا دی هر چا چې شریك ونیو له الله سره (په عبادت کې بل شی) نو په تحقیق حرام کړی دی الله په دغه (مشرك) باندې جنت، او ځای د ده اور (د دوزخ دی)، او نشته ظالمانو ته هیڅ مدد کوونکي (چې عذاب ترې دفعه کړي).

تفسیر: له دې ځایه د نصرانیانو د «ایمان بالله» کیفیت ښودل کیږي، د دوی د ایمان بالله حال دا دی، چې د عقل په خلاف او له سلیم فطرت څخه چپ (مخالف) او د مسیح علیه السلام له تصریحاتو څخې مخالف د مسیح علیه السلام د بي بي مریمې له ځوی ځني په خپله الله جوړوي، حال دا چې پخپله مسیح علیه السلام د الله تعالی په ربوبیت او لکه نور انسانان پخپل مربوبیت بندګۍ باندې ظاهر باهر اقرار او اعتراف کوي، او د هغه خرابې او ورانې یې په ډېر زور او شور سره بیان کړی دی، چې په هغه کې د ده امت مبتلا کېدونکی وو، بیا هم دا ړانده عبرت نه آخلي.

لَّقَدْ كَفَرَ ٱلَّذِينَ قَالُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ ثَالِثُ ثَلَـٰثَةٍ ۘ

خامخا په تحقیق کافران شوي دي هغه کسان چې وایي دوی چې بېشکه الله دریم له دریو (معبودانو) څخه دی.

تفسير: يعنې مسيح عليه السلام او روح القدس عليه السلام او الله جل جلاله يا مسيح عليه السلام او مريم رضي الله تعالى عنها او الله جل جلاله درې واړه معبودان دي (العياذ بالله) په دوی کې يوه برخه د الله شوه، بيا هغه درې واړه يو او هغه يو درې دي.

د عامو نصرانيانو عقيده همدا ده، او دغه د عقل او بداهت نه خلاف عقيده په عجيبو تاو کړو او پېچلو عباراتو سره اداء کوي، او کله چې په دغه مفهوم څوک نه پوهيږي، نو هغه يو ما وراء العقل حقيقت بولي.

وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّآ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ ۚ وَإِن لَّمْ يَنتَهُوا۟ عَمَّا يَقُولُونَ لَيَمَسَّنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾
أَفَلَا يَتُوبُونَ إِلَى ٱللَّهِ وَيَسْتَغْفِرُونَهُۥ ۚ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧٤﴾

حال دا چې نشته (بل) هيڅ لايق د عبادت مګر (خو شته) معبود يو (چې الله دی)، او که وانه اوښتل دوی (له شرکه توحيد ته او) له هغې خبرې چې وايي؛ نو خامخا وبه رسيږي هرو مرو (خامخا) هغو کسانو ته چې کافران (پاتې) شوي دي لـه دوی څخـې عـذاب دردناک. آيا نو توبه نه کوي دوی الله ته (له دې ويلو) او (نه) غواړي بخښنه له ده څخه (له دې بدې وينا يعنې توبه دې وباسي او معافي دې وغواړي)، او الله ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ډېر مهربان دی.

تفسير: دا د هغه «غفور رحيم» شان دی، چې داسې ياغي او ګوستاخ مجرم هم کله چې په زړه کې وشرميږي، او د حقيقي اصلاح په عزم او ارادې حاضر شي، نو په يوه شېبه (ساعت) کې د ده د ګرد عمر جرائم ورمعافوي.

مَّا ٱلْمَسِيحُ ٱبْنُ مَرْيَمَ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِ ٱلرُّسُلُ وَأُمُّهُۥ صِدِّيقَةٌ ۖ كَانَا يَأْكُلَانِ ٱلطَّعَامَ ۗ ٱنظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ ٱلْءَايَٰتِ ثُمَّ ٱنظُرْ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿٧٥﴾

نه دی مسيح ځوی د مريمې مګر يو رسول دی، (او معبود نه دی)، په تحقيق تېر شوي دي پخوا له ده څخه (نور ډېر) رسولان، او مور د ده صديقه (ډېره رښتينې) وه، وو دوی دواړه (مور او ځوی) چې خوړه به يې طعام (په شان د نورو مخلوقاتو، نو څرنګه به معبود او الله شي؟)، وګوره ! څرنګه بيانوو مونږ دوی ته دلائل (د توحيد) بيا وګوره (دوی ته) چې څرنګه چپ کولی شي دوی (له حقه).

تفسير: يعنې له هغه مقدس او معصوم جماعت څخه دغه مسيح عليه السلام هم يو فرد دی، نو دی معبود ګرځول ستاسې سفاهت دی، د جمهور امت تحقيق همدادې چې په ښځو کې نبوت نه دی راغلی، او دا لوی او لوړ منصب نارينه وو لره مخصوص دی: ﴿وَمَآ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُّوحِىٓ إِلَيْهِم مِّنْ أَهْلِ ٱلْقُرَىٰٓ﴾ (۱۳ جزء د يوسف د سورت (۱۰۹) آيت (۱۲) رکوع).

بتول بي بي مريم رضي الله تعالى عنها هم يوه وليه بي بي وه، نبي نه وه، له غور کولو څخه وروسته معلومېدی شي، هر هغه څوک چې خوړلو او څښلو ته اړ (مجبور) وي، نو دی د دنيا هر شي ته محتاج وي، ځمکه، هوا، لمر، حيوانات حتی له بولو او غائطو او نورو ضرورياتو څخه هم نشي مستغني کېدلی، بيا هم تاسې وواييء !، هغه ذات چې د نورو انسانانو په شان د خپل ژوندون او بقاء لپاره له عالم أسباب څخه مستغني نه وي، نو دی څرنګه معبود کېدی شي؟ دا داسې قوي او واضح دليل دی، چې عالم او جاهل يو شان پرې پوهېدی شي، يعنې خوړل او څښل له الوهيت سره منافي دي.

﴿قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا وَاللَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٧٦﴾﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته چې) آيا عبادت كوئ تاسې بې له الله څخه د هغه شي؛ چې مالك نه دى لپاره ستاسې د (د فع كولو د) ضرر او نه د (رسولو د) نفع، او الله هم دى ښه اوريدونكى (د ګردو اقوالو) ښه عالم (په ټولو احوالو).

تفسير: يعنې لكه چې مسيح عليه السلام ته يې الله ووايه؛ نو لازم دى چې معبود هم ورته ووايي، مګر معبود ګرځيدل يواځې د هغه ذات سره مختص دى؛ چې د هر قسم نفع او ضرر مالك او پوره اختيار لرونكى وي، ځكه چې عبادت د انتهايي تذلل نوم دى، او انتهايي تذلل د هغه ذات په مقابل كې اختيار كولى شي، چې د انتهايي عزت او غلبې لرونكى وي، په هر آن كې د ګردو خبرو اوريدونكى او د ټولو پر احوالو پوهيدونكى وي، په دې سره د تثليث د شركيې عقيدې او د ګردو مشركينو د نورو باطله عقائدو ردّ هم وشو.

﴿قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوا أَهْوَاءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا مِن قَبْلُ وَأَضَلُّوا كَثِيرًا وَضَلُّوا عَن سَوَاءِ السَّبِيلِ ﴿٧٧﴾﴾

ووايه (اى محمده !) چې اى اهل كتابو: مه كوئ تجاوز (له حده او مه كوئ مبالغه) په (خبره) د دين كې په ناحقه سره، او مه كوئ متابعت د ځتي (بيكاره) خواهشونو د (هغه) قوم چې (له ډيره جهله) په تحقيق ګمراه شوي دي پخوا (له دې نه)، او ګمراهان كړي دي دوى ډير (خلق)، او ګمراه شوي دي دوى له سمې صافې لارې.

تفسير: د عقيدې تجاوز او مبالغه دا ده چې يو بشري مولود معبود وګرځوئ، او په عمل كې مبالغه دا ده چې هغه ته «رهبانيت» وايئ ﴿وَرَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ﴾ (۲۷ جـزء د الحديد سورت (۲۷) آيت (۴) ركوع).

د يهودانو له هغو قبائحو څخه چې بيان كړل شول؛ ظاهريږي چې په دنيا پرستۍ كې د ډوبيدلو له سببه د دوى په نزد كې د دين او ديندارانو هيڅ څه عظمت او وقعت نه وو، تر دې چې د انبياوو عليهم السلام اهانت او قتل او نور د دوى خاص شعائر وو، پر خلاف د دوى نصرانيانو د انبياوو عليهم السلام پـه تعظيم كـې دومـره غُلُوّ وكړه، چې له دوى ځنې ځينو ته يې د الله ځوى هم ويل، او دنيا يې پريښوده، او «رهبانيت» يې اختيار كړ.

﴿وَلَا تَتَّبِعُوا أَهْوَاءَ قَوْمٍ﴾ الآيه ـ «او مه كوئ تاسې متابعت د ځتي (بيكاره) خواهشونو د قوم» يعنې په اصلي «انجيل» او نورو حقو آسماني كتابونو كې د دې شركي عقيدې هيڅيرې څه اثر او پته نه وه لګيدلې، وروسته بيا د «يوناني بت پرستانو په تقليد هغه د (پولوس) له خوا ايجاد شوه، چې پر همغې غلطې لارې نور ګرد سره رهي (روان) او ټينګك پاتې شول»، له داسې ړانده تقليد څخه د نجات هيله (اميد) او توقع لرل هيڅ يو عاقل لره نه ده پكار.

﴿لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿٧٨﴾﴾

لعنت كړى شوى دى په هغو كسانو چې كافران شوي دي له بني اسرائيلو څخه په ژبه د داود سره او (په ژبه د) عيسى ځوى د مريمې، دا (لعنت پر دوى) په سبب د دې وو چې نافرمانې يې كوله (له احكامو د الله) او وو دوى چې تيريدل به (له حدودو د الله).

تفسیر: هسې خو په ګردو آسماني کتابونو کې پر کافرانو لعنت ویل شوی دی، لیکن د بني اسرائیلو پر کافرانو څنګه چې دوی په عصیان او تمرد کې په داسې شان له حده تېر شول؛ چې نه مجرم په هیڅ ډول سره د جرائمو له ارتکابه بېرته ګرځېده، او نه غیر مجرم د مجرم مخه نیوله، او د منکراتو او فواحشو پر مرتکبینو باندې د هیڅ یو قسم انقباض، تکدر، او خفګان اظهار هم نه کېده، نو دلته الله تعالی د داود او مسیح علیهما السلام په ژبه پر دوی لعنت وواپه، همغسې چې په ګناهونو کې د دوی جسارت له حده او اندازې تېرې او تجاوز کړی وو؛ نو دا لعنت هم د داسې جلیل القدرو انبیاوو په توسط پر دوی وویل شو، چې په فوق العاده ډول سره تباه کوونکی ثابت شو، غالبا د همدې لعنت په نتیجه کې له دوی څخه ډېر افراد ظاهرا او باطنا د بیزوګانو او بدو ځناورو په شکل مسخ او بدل کړل شول.

كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ

وو دوی چې یو بل به یې سره نه منع کول له هغه بد عمله چې کاوه به دوی هغه.

تفسیر: د «لا یتناهون» دوه معنې کېدی شي: (۱) نه ستانه کېدل (کما في روح المعاني). (۲) یو بل به یې نه ستناوه (کما هو المشهور)، کله چې بدي په یوه قوم کې منتشره او خوره شي، او په هغوی کې کوم یو منع کوونکی او ستنوونکی هم نه وي؛ نو د عمومي عذاب اندېښنه شته.

لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٧٩﴾ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا

(قسم دی) خامخا بد وو هغه کار چې وو دوی چې کاوه به یې. ته به وینې ډېر له دوی چې دوستي به کوي له هغو کسانو سره چې کافران شوي دي.

تفسیر: له کافرانو څخه مراد مشرکین دي، او د دې آیتونو مصداق د مدینې منورې یهودان وو، چې دوی د مکې معظمې له مشرکانو سره جوړه او له مسلمانانو سره یې جنګ کړی وو.

لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ أَن سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿٨٠﴾

(بیا قسم دی چې) خامخا بد وو هغه شی چې پخوا لیږلي وو دوی ته ځانو د دوی (چې هغه شی موجب وو) د دې چې په غضب شو الله پر دوی، او په عذاب کې دوی به تل وي.

تفسیر: یعنې د اعمالو هغه ذخیره چې پخوا له مرګه یې آخرت ته لېږي؛ داسې ده چې دوی د الهي غضب او د ابدي عذاب مستحق ګرځوي.

وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ

او که وی دوی چې ایمان یې راوړی وی (د زړه نه) پر الله او نبي (محمد یا موسی) او په هغه کتاب چې نازل شوی دی ده ته، نو نه به وو نیولي دوی دا مشرکان دوستان.

تفسیر: له «النبي» څخه ځیني مفسرین موسی علیه السلام او ځیني محمد صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم مرادوي، مطلب یې داسې شو: که یهودانو په رښتیا سره د موسی علیه السلام په صداقت او تعلیماتو یقین درلود (لرلی)، له مشرکانو سره به یې دوستي نه کوله، یا که دوی پر نبي علیه السلام په اخلاص سره ایمان راوړی وي؛ نو داسې حرکت به له دوی څخه نه صادرېده، چې د اسلام له دښمنانو سره ناسته ولاړه او جوړه وکړي، په دې دوهم تقدیر سره به دا آیت د یهودو د منافقانو په حق کې وي.

وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۸۱﴾

او لېکن ډېر (کسان) له دوی څخه فاسقان دي (د ایمان له دائرې څخه وتونکي).

**تفسیر:** یعنې د الله تعالی او د خپل منلي رسول سره د ډېرې نافرمانی کولو له امله (وجې) دوی ته داسې یو حالت پیدا شو، چې اوس د موحدینو په مقابل کې مشرکینو ته ترجیح ورکوي، د افسوس ځای دی چې نن هم زیاتره په نامه سره مسلمانان همداسې دي، چې د مسلمانانو او د کفارو د مقابلې په وخت کې له کفارو سره دوستي کوي، او د کفارو حمایت او وکالت کوي.

«اللهم احفظنا من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا»

لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۸۲﴾

خامخا مومي به ته ډېر سخت له ټولو خلقو له جهته د عداوت (دښمنۍ) له هغو کسانو سره چې مؤمنان دي؛ یهودیان او (بل) هغه کسان چې مشرکان دي، او خامخا مومې به ته ډېر نژدې له ګردو (ټولو) خلقو څخه له جهته د دوستۍ له هغو کسانو سره چې مؤمنان دي؛ هغه کسان چې وايي بېشکه مونږ نصارى یو، دا (دوستي) په سبب د دې ده؛ چې بېشکه ځینې له دوی رښتین عالمان او زاهدان پوهان دي، او بېشکه چې دوی نه کوي تکبر او لويي (له منلو د حقه).

وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۳﴾ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَذٰلِكَ جَزَآءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۵﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۸۶﴾

او کله چې واوري دوی هغه (کلام د الله قرآن) چې نازل (رالېږلی) شوی دی رسول ته (نو) وینې به ته سترګې د دوی چې بهېږي (تویېږي) له اوښکو؛ له جهته د دې چې وپېژانده دوی له حقو (خبرو د الله)، وايي دوی: ای ربه ځمونږه ! ایمان راوړی دی مونږ (په قرآن او رسول ستا) نو ولیکه مونږ له شاهدانو (منونکو). او څه باعث دی پر مونږ چې نه به راوړو ایمان په الله، او په هغه څه چې راغلی دی مونږ ته له حق څخه (چې رسول او قرآن دی) حال دا چې طمع (هیله، امید) لرو د دې چې داخل به کړي مونږ رب ځمونږ سره له قوم صالحانو (چې محمدي امت دی په جنت کې)، پس بدل ورکړ دوی ته الله په سبب د هغه چې ویلې دوی جنتونه چې بهېږي له لاندې (د ونو او ماڼیو) د دوی ویالې، چې تل به وي دوی په هغو کې، او دا (جنت) جزاء د محسنانو (نیکی کوونکو) ده. او هغه کسان چې کافران (منکران) شوي دي او نسبت د دروغ یې کړی آیتونو ځمونږ ته؛ همدغه کسان صاحبان د جحیم (ملګري د دوزخ) دي.

**تفسیر:** په دې آیتونو کې دا ښوولې شوي دي؛ چې د یهودانو دوستي له مشرکینو سره محض د اسلام او مسلمانانو د بغض او عداوت له سببه ده، د هغو قومونو له جملې څخه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورسره زیاته سابقه

درلوده (لرله)، يهودانو او مشركينو دواړو قومونو په ترتيب سره له اسلام او مسلمانانو سره سخت بغض او عداوت درلود (لرلو).

د مكې معظمې د مشركانو ضرر رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خو «أظهر من الشمس» دى، ليكن ملعونو يهودانو هم له ډېرو سپكو او ناوړو حركاتو څخه لاس نه آخيسته، په داسې حال كې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مطمئن او ډاډه ناست وو؛ لويه تيږه يې پرې وروغړوله چې په شهادت يې ورسوي، په طعام كې به يې زهر وراچول، سحر او كوډې به يې پرې كولې.

لنډه يې دا چې يو غضب به يې وروسته له بل غضب او يو لعنت به يې پس له بل لعنته ځانته ګاټه، بالمقابل سره له دې چې نصارى هم په كفر كې مبتلا وو، او له اسلام سره يې حسد او رخه(كينه) درلوده، او داسې سترګې يې نه درلودې؛ چې په هغو سره د مسلمانانو عروج وكتلى شي، بيا هم په دوى كې د حق منلو استعداد له دې دواړو فرقو څخه زيات وو، د دوى زړونه د اسلام او د مسلمانانو محبت او مينې ته نسبتا ژر مائل كېدل.

لكه چې د روم (قيصر) او د مصر پاچا (مقوقس) او د حبشې ټولواك (پاچا) نجاشي هغه سلوك چې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د رسالت له دعوت سره كړى دى؛ د دې خبرې شاهد دى، چې په هغه وخت كې د حق منلو او د مسلمانانو د دوستۍ صلاحيت او استعداد په دوى كې د نورو اقوامو په نسبت زيات وو.

كله چې د اصحابو يو ډله د مشركانو د ظلم او تيري له لاسه پكو (تنګه) شوه؛ نو د (حبشې) په لورې يې هجرت وكړ، او مشركان تر هغه ځايه پورې هم د مسلمانانو په تعقيب كې وو، او (نجاشي) ته يې د دوى په خلاف ويناوې وكړې، نو (نجاشي) يوه ورځ دغه مسلمانان خپل حضور ته وروغوښتل، او څه پوښتنې يې له دوى څخه وكړې، او د مسيح عليه السلام په نسبت يې هم د دوى عقيدې ځان ته ښكاره كړې، جعفر رضي الله عنه د «مريم» د سورت څو آيتونه ورته ولوستل، او خپلې عقيدې يې په صاف ډول وربيان كړې، په (نجاشي) يې ډېر زيات تأثير وكړ، او اقرار يې وكړ: «څه شيان چې د مسيح عليه السلام په نسبت بيان فرمايلي شوي دي؛ بېخي رښتيا او بالكل صحيح دي»، (نجاشي) د پخوانيو كتابونو له بشارتونو سره سم محمد صلى الله عليه وسلم آخر الزمان نبي ومانه.

دا قصه اوږده ده، لنډه يې دا چې له هجرت څخه څو كاله وروسته د حبشې پاچا يوه جرګه (چې پر اويا تنو جديد الاسلامو عيسايانو مشتمله وه) د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم أقدس خدمت ته ولېږله، كله چې دا جرګه مدينې منورې ته ورسېده، او د قرآن كريم له اورېدلو څخه خوندوره شوه؛ نو د الهي كلام له اورېدلو څخه دوى ته زيات رقّت پيدا شو، او په ژړا شول، او په داسې حالت كې چې د دوى له سترګو اوښكې بهېدې؛ پر ژبو يې د «ربّنا آمنّا» كلمات جاري وو، په دى آيتونو كې دهمغې جرګې حال بيان شوي دي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ ﴿٨٧﴾ وَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنتُم بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعني اى مؤمنانو !) مه حراموئ تاسې پاك لذيذ له هغو شيانو نه چې حلال كړي دي الله لپاره ستاسې، او مه كوئ تېرى تاسې (له حدودو د الله)، بېشكه الله نه خوښوي تېرېدونكي له حدودو. او خورئ تاسې له هغه څيزه چې رزق (روزي) دركړې ده تاسې ته الله (چې) حلاله پاكيزه (ده) او وويرېږئ له الله څخه، هغه (الله) چې تاسې پرې ايمان لرونكي يئ !.

**تفسیر:** هیڅ یو آسماني کتاب تر نن پورې داسې جامع، معتدل، او فطري تعلیم د انساني ترقیاتو د هرې شُعبې په نسبت نه دی وړاندې کړی، لکه چې په دغو دوو آیتونو کې د قرآنکریم له خوا وړاندې شوی دی، په دې آیتونو کې الله تعالیٰ مسلمانان په صاف ډول سره له دې نه منع کړي دي، چې دوی کوم لذیذ، حلال، او طیب شی په خپلو ځانونو عقیدتاً یا عملاً حرام وګرځوي، نه یواځې هم دا بلکه دوی ته الله تعالی له حلالو او طیبو نعمتونو ځنې د متمتع کېدلو ترغیب هم ورکړی دی، مګر سره له سلبي او ایجابي شرطونو:

(۱) چې اعتداء (حد نه تجاوز) ونه کړئ، او له حده تېر نشئ.

(۲) چې تقوی اختیار کړئ، او له الله جل جلاله څخه ووېرېږئ.

د اعتداء دوه مطلبه کېدی شي، له حلالو شیانو سره لکه د حرامو په شان معامله کول، او د نصرانیانو په شان په رهبانیت کې مبتلا کېدل، یا د لذائذو او طیباتو په متمتع کېدلو کې د اعتدال له حده تېرېدل، تر دې چې په لذتونو او شهوتونو کې داسې لګیا او منهمک کېدل، چې د یهودانو په شان یواځې دنیوي ژوندون خپل مقصد او مطمح نظر وګرځوي.

الغرض د غُلُوّ، جفا، افراط او تفریط په منځ کې یوه متوسطه او معتدله لاره اختیارول په کار دي، نه په دنیوي لذتونو کې د ډوبېدلو اجازه شته، او نه د «رهبانیت» له لارې د مباحاتو او طیباتو پرېښودل په کار دي، د «رهبانیت» له لارې قید مو ځکه کېښود، چې په ځینو وختونو کې د بدني یا نفسي علاج لامله له کوم مباح څخه پرهېز کول په عارضي ډول سره په ممانعت کې داخل نه دی.

او همدا راز مسلمان په تقوی سره مأمور دی، چې د هغې معنی دا ده: چې له الله جل جلاله ځنې ووېرېږي، او له ممنوعاتو ځنې اجتناب وکړي، له تجربې څخه معلومه شوې ده، چې د ځینو مباحاتو استعمالول په ځینو وختونو کې د کوم حرام یا ممنوع شي ارتکاب ته مفضي کیږي، د داسې مباحاتو پرېښودل ـــ نه د عهد یا تقرب او قسم (لوړې) په توګه (طور) سره؛ بلکه د احتیاط په ډول ښه دي، که کوم سړی یې په کوم وخت کې سره د اباحت له اعتقاده ترک کړي، نو دغه «رهبانیت» نه دی، بلکه په ورع او تقوی کې شامل دی: «لا یبلغ العبد أن یکون من المتّقین حتّی یدع ما لا بأس به حذراً ممّا به بأس ـــ الترمذي»، الحاصل د اعتدا ترک او د تقوی د اختیار د قید له ملحوظ سره له هر قسم طیباتو څخه استفاده کېدی شي، او د ژوندانه په هر اړخ کې د پرمختګونو وَرُونه پرانیستلی شي.

لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ

نه نیسي تاسې الله په لغوه سره په قسمونو ستاسې کې.

**تفسیر:** یعنې پر دوی په دنیا کې هیڅ کفاره نشته، لکه چې په «منعقد یمین» کې واجبه ده، د «لغو» او بیهوده قسم تفسیر په (۲) جزء د البقره سورت په (۲۲۵) آیت (۲۸) رکوع کې پخوا لیکلی شوی دی.

وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَۚ فَكَفَّارَتُهٗٓ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ
اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍؕ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍؕ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا
حَلَفْتُمْؕ وَاحْفَظُوْٓا اَيْمَانَكُمْؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾

ولیکن نیسي تاسې په (ماتولو د) هغه (عهد) سره چې کلک کړي وي تاسې قسمونه (پر هغه، په قصد د زړه سره)؛ نو کفّاره (د ماتولو) د دې (قسم) طعام ورکول دي لسو مسکینانو ته له اوسطې

(درجې) د هغو خوړو چې طعام ورکوئ تاسې (په هغه سره) کورنیو خپلو ته، یا جامې ورکول دي دغو (لسو مسکینانو) ته یا آزادول د (یوې) غاړې دي (د مریي)، نو هر څوک چې ونه مومي (له دغو درې واړو کفّاراتو یو هم) نو روژه نیول د درو ورځو دي، دا (مذکور شیان) کفاره د قسمونو ستاسې ده، کله چې قسم یاد کړئ تاسې (او بیا یې مات کړئ)، او ساتئ تاسې قسمونه خپل (له هر قسم نقصانه)، همداسې (چې د یمین احکام یې بیان کړل) بیانوي الله تاسې ته آیتونه خپل لپاره د دې چې شکر وکاږئ په دې نعمت او احسان او شرعي بیان.

تفسیر: یعنې له قسم ماتولو څخه وروسته کفاره اوړي، چې هغه یو له دغو څلورو واړو کارونو څخه دی:

(۱) طعام ورکول دي لسو تنو مسکینانو ته، په طعام ورکولو کې اختیار لرئ چې لس تنه مسکینان په خپل کور کې مېلمانه کوئ، او مړوئ یې، یا د «فطر» د صدقې په اندازه هر مسکین ته غَله ورکوئ (له اوسطې نه د دوو وختو طعام مراد د، سره د نُکلي ـ کتغ) ځکه چې اعلی یې (۳) وخته سره له نورو لوازمو دی، او ادنی یې یو وخته سپوره ډوډی ده).

(۲) داسې جامه ورکول دي چې په هغې سره د مسکین د بدن اکثره برخه پټه شي، مثلا کمیس، یا پرتوګ یا ټیکری (یا هغه چې د عورت ستر راولي، او لمونځ پرې وشي).

(۳) د یوه مریي آزادول دي، (او په دغو درې واړو کې سړی مخیّر دی چې هر یو کوي).

(۴): روژه نیول دي، چې متواتر پرله پسې درې ورځې دې روژه ونیسي، د ﴿فَمَن لَّمۡ يَجِدۡ﴾ د «نه میندلو» څخه مراد دا دی، چې د نصاب خاوند نه وي، (کما في روح المعاني).

﴿وَاحۡفَظُوٓاْ أَيۡمَٰنَكُمۡۚ﴾ «او ساتئ قسمونه خپل» یعنې اول خو د قسم له کولو څخه ژبه وساتئ، او که یې کله وکړئ، او په ماتولو کې یې خیر نه وو، نو بیا یې له ماتولو څخه وساتئ، او که در څخه مات شو، نو بیا یې د کفارت له ترک کولو څخه وساتئ.

په بل عبارت: د قسمونو حفاظت دا دی: چې پر هرې خبرې بې له ضرورته قسم ونه خوري؛ چې دغه ښه عادت نه دی، او که قسم یې وکړ؛ نو تر مقدوره دې وساتي (که په ماتولو کې یې خیر وي؛ مات دې کړي او کفاره دې ورکړي !) او که له کوم سببه یې مات کړي؛ نو کفاره دې اداء کړي، دا ګرد شیان د یمین په حفاظت کې داخل دي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡخَمۡرُ وَٱلۡمَيۡسِرُ وَٱلۡأَنصَابُ وَٱلۡأَزۡلَٰمُ رِجۡسٞ مِّنۡ عَمَلِ ٱلشَّيۡطَٰنِ فَٱجۡتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ٩٠

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !): بېشکه همدا خبره ده چې شراب او قمار او بتان او غشي (د فال، دا څلور واړه شیان) پلیت دي له کار د شیطان څخه دي؛ نو ځان وساتئ تاسې له دې څخه لپاره د دې چې نجات ومومئ تاسې (په دې ځان ساتلو سره).

تفسیر: د «انصاب» او د «ازلام» تفسیر په (۶) جزء د المائده سورت په (۳) آیت په اوله رکوع کې د ﴿وَمَا ذُبِحَ عَلَى ٱلنُّصُبِ وَأَن تَسۡتَقۡسِمُواْ بِٱلۡأَزۡلَٰمِۚ﴾ په ذیل کې تېر شو، لـه دې آیت څخه پخوا هم ځینې آیتونه د شرب الخمر (شراب څښلو) په نسبت نازل شوي وو، اول دا آیت نازل شوی وو: ﴿يَسۡـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلۡخَمۡرِ وَٱلۡمَيۡسِرِۖ قُلۡ فِيهِمَآ إِثۡمٞ كَبِيرٞ وَمَنَٰفِعُ لِلنَّاسِ وَإِثۡمُهُمَآ أَكۡبَرُ مِن نَّفۡعِهِمَاۗ﴾ (۲ جزء د البقره سورت (۲۱۹) آیت (۲۷) رکوع) اګر که په دغه آیت کې هم د خمر د تحریم په لوري صریحه اشاره شته، مګر

خرنگه چې په هغه کې په صاف طور سره د خمر د پرېښودلو حکم نه وو؛ نو ځکه عمر رضي الله تعالی عنه د هغه له اورېدلو څخه وروسته وویل: «اللهم بيّن لنا بيانا شافيا»، وروسته له دې نه بل آيت راغی: ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْرَبُوا الصَّلَوٰةَ وَأَنتُمْ سُكَارَىٰ﴾ الآيه ـ (۵ جزء د النساء سورت (۴۳) آيت (۷) رکوع)، په دې کې هم د خمرو د تحريم تصريح نه وه، اګر که د نشې په حالت کې له لمانځه څخه ممانعت شوی دی، او دغه قرينه وه په دې خبره باندې چې غالباً دا شی عنقريب بيخي حرام کېدونکی دی، مګر څنګه چې په عربو کې د شرابو د څښلو رواج ډېر زيات وو، او له هغو څخه دفعتاً ځان ژغورل (بچ کول) د مخاطبينو په لحاظ سهل او آسان نه وو، نو ځکه په نهايت حکيمانه ډول سره يې متدرجاً لومړی د شرابو نفرت په زړونو کې ورواچاوه، او بيا ورو ورو د تحريم له حکم سره مأنوس کړل، لکه چې عمر رضي الله تعالی عنه د دې دويم آيت له اورېدلو څخه بيا هغه الفاظ تکرار کړل چې: «اللهم بيّن لنا بيانا شافيا»، خو د (المائده) سورت دا آيتونه چې مونږ يې په تلاوت سره اوس مشرّف يو؛ له ﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْخَمْرُ﴾ څخه تر ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ﴾ پورې نازل شول، چې د بت پرستۍ په شان په دې کې په ډېر صاف او ښکاره ډول سره له دې ناولي او مردار شي څخه د اجتناب کولو هدايت راکړی شوی دی، لکه چې عمر رضي الله تعالی عنه د ﴿فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ﴾ له اورېدلو څخه وروسته په زوره نارې کړې: «انتهينا انتهينا يا ربنا !» او خلقو د شرابو چاټې ګانې ماتې کړې، او شرابخانې له شرابو څخه تشې شوې، د مدينې منورې په کوڅو کې لکه د باران اوبه شراب بهېدل.

إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَٰوَةَ وَالْبَغْضَآءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴿۹۱﴾

بېشکه چې همدا خبره ده؛ غواړي شيطان چې واچوي په منځ ستاسې کې عداوت (دښمني) او بغض (کينه په څښلو) د شرابو کې او (کولو د) قمار کې، او اړوي تاسې له ياده د الله او له لمانځه څخه، نو آيا يئ تاسې منع کيدونکي (اوښتونکي له دې بدو کارونو؟ بلکه واوړئ).

**تفسير:** کله چې د شرابو د څښلو له اثره د سړي عقل او سد (هوش) له سر څخه لاړ شي، نو ډېر ځلې شرابيان د ليونيانو په شان په خپلو منځو کې جنګونه او جګړې سره کوي، او يو له بل سره وهي، او يو له بل سره عداوتونه او عنادونه کوي، همدغه حال بلکه له دې څخه زيات د قمار (جوارۍ) دی، د قمار په وړلو او بايللو کې سختې جګړې، منازعې او فسادونه پېښيږي، چې د هغو په وسيله شيطان ته ښه موقع د شور ماشور اچولو لپاره په لاس ورځي، دا خو يې ظاهري خرابي شوه، باطني نقصان يې دا دی، چې د هسې شيانو په مشغولېدو سره انسان د الله تعالی له ياد او عبادت څخه بيخي غافليږي.

**فائده:** په دغو دواړو آيتونو کې د شرابو او قمار د حرمت تاييد او تاکيد په لس ډوله (قسمه) شوی دی:

(۱) دا چې جمله يې په «انما» سره شروع فرمايلې ده، تاکيد افاده کوي.

(۲) د بت پرستۍ په شان يې وفرمايل.

(۳) پليت يې وبلل.

(۴) د شيطان عمل يې وباله.

(۵) د اجتناب امر يې ترې صادر کړ.

(۶) دا چې اجتناب يې د نجات سبب دی.

(۷) دا چې د بغض، عداوت، او کينې موجب دی.

(٨) دا چې د الله له ذکر او یاد څخه ګرځوونکی دی.

(٩) دا چې حصاروونکی دی له لمانځه.

(١٠) دا چې صریح امر صادر شوی دی، چې د شرابو له څښلو او قمار وهلو څخه واوړئ !.

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٩٢﴾

او ومنئ تاسې (حکم د) الله، او ومنئ تاسې (حکم د) رسول (د الله)، او وساتئ تاسې (ځان له مخالفت د دوی)، پس که وګرځېدلئ تاسې (له احکامو د دوی) نو پوه شئ ! چې بېشکه همدا خبره ده چې: پر رسول ځمونږ (محمد) هم دا رَسَونه (د پیغام) ده ښکاره (روښان په ښه وجه سره).

**تفسیر:** یعني که د یوه شي ګټې او ضررونه تاسې نشئ احاطه کولی؛ نو بیا هم د الله تعالی د احکامو امتثال وکړئ، او د الهي قانون له تخلّفه ځان وساتئ ! او که مو ځانونه ترې ونه ساتل؛ نو ځمونږ رسُول الهي احکام او قوانین تاسې ته په ښکاره ډول سره در رسولي دي، د تخلّف نتیجې ته تاسې پخپله فکر وکړئ ! چې څه به کیږي؟ د هغه اضرار یقینا تاسو ته رسیدونکي دي.

لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوا وَّآمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ثُمَّ اتَّقَوا وَّآمَنُوا ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٣﴾

نشته پر هغو کسانو چې ایمان یې راوړی وي او کړي یې وي ښه (عملونه) هیڅ ګناه په هغه شي کې چې خوړلي دي دوی (له حرمت څخه پخوا) کله چې راتلونکو څخه ځان وساتي، او ټینګ وي په ایمان کې، او کوي ښه (عملونه)، بیا ځان ټینګ کړي (له محرّماتو) او ایمان راوړي (په تحریم د محرّماتو هم)، بیا (وروسته له هغه) پرهېز کوي (له شبهاتو هم)، او احسان کوي (له خلقو سره یا ښه کړي ګرد اعمال خپل)، او الله خوښوي نیکي کوونکي.

**تفسیر:** په نهایت قوي او صحیحو احادیثو کې راغلي؛ کله چې د خمر د تحریم آیتونه نازل شول، نو اصحاب کرام رضي الله تعالی عنهم سوال وکړ: «یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! د هغو مسلمانانو احوال به څه وي، چې د تحریم له حکم څخه پخوا یې شراب څښلي، او په همغه حالت کې مړه شوي دي؟» مثلا هغه ځینې اصحاب چې شرا ب یې څښلي وو، او د «احد» په غزا کې شریک شوي وو، او په هغه حالت کې په شهادت ورسېدل، چې په معده کې یې شراب هم موجود وو، نو د دوی په ځواب کې دا آیت نازل شو.

د الفاظو له عموم او د نورو روایاتو له کتلو څخه د دې آیت مطلب دا دی: هغه کسان چې د ایمان او د نېک کار او صالح عمل خاوندان وي، ژوندي وي که مړه؛ هغوی ته د یوه مباح شي په خوړلو کې د اباحت په وخت کې هیڅ مضایقه نشته، خصوصا بیا هغو کسانو ته چې په عامو احوالو کې په تقوی او د ایمان په خصائلو سره متصف وي، او بیا په همدې خصائلو کې یې پرله پسې ترقي کړې وي، تر دې چې د ایمان او تقوی په مدارجو کې یې دومره ترقي کړې وي؛ چې د احسان تر مرتبې پورې رسیدلي وي.

د ایمان او یقین مراتب د قوت او ضعف په لحاظ تفاوت سره لري، له تجربو او شرعي نصوصو څخه ثابته ده، څومره چې سړی په ذکر او فکر په صالح عمل او په جهاد في سبیل الله کې ترقي وکړي، په همغه اندازه د الله تعالی خوف او زړه یې د ده د عظمت او جلال له تصوره معمور او ایمان او یقین یې مضبوط او مستحکم کیږي.

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ تَنَالُهُ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَخَافُهُ بِالْغَيْبِ ۚ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٤﴾﴾

اې هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اې مؤمنانو !) خامخا ازمويي تاسې هرو مرو (خامخا) الله په يوه شي له ښكار نه (په وخت د احرام كې)؛ چې رسيږي (ځينو د) هغو ته لاسونه ستاسې (چې واړه دي)، او (ځينو د هغو ته) نيزې ستاسې (چې غټ دي، دغه ازمېښت) لپاره د دې دى چې ښكاره (معلوم) كړي الله هغه څوك چې ويريږي له ده په غيب سره (بې له ليدلو او ښېل يې كړي د ضعيف الايمان څخه)، نو هر هغه چې له حده تېرى وكړي (په كولو د ښكار په احرام كې) پس له دې (منعې له ښكاره) نو دى ده ته عذاب دردناك.

تفسير: يعنې د احرام په حالت كې د ښكار له نه كولو څخه مطلب دا دى: چې د الله تعالى له طرفه په مُطيعو او امر منونكو بند‌گانو دغه امتحان دى، چې دوى د احرام په حالت كې كله چې له ښكار سره مخامخ شي، او په آسانى سره د هغه په ويشتلو او نيولو هم قادر وي؛ نو څوك دى چې بې له ليدلو څخه له الله تعالى څخه وويريږي؟ او د هغه د حكم امتثال وكړي؟ او له اعتداء (د الهي احكامو له تجاوز كولو) څخه د الهي سزا له امله (وجې) وويريږي؟ .

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ هَدْيًا بَالِغَ الْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِ ۗ عَفَا اللَّهُ عَمَّا سَلَفَ ۚ وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ ذُو انتِقَامٍ ﴿٩٥﴾﴾

اې هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اې مؤمنانو !) مه وژنئ تاسې ښكار حال دا چې تاسې محرمان اوسئ، او هر هغه څوك چې ووژني دا (ښكار) له تاسې څخه په قصد سره نو (پرې) بدل دى په مثل د هغه چې وژلى (يې) دى له چارپايانو څخه، چې حكم به كوي په هغه سره دوه خاوندان د عدل (انصاف) له تاسې (مسلمانانو) څنې، په دې حال چې هغه (د بدل حيوان) د نذر په ډول (طريقې) ورسولى شي كعبې ته، يا (پرې) كفّاره ده طعام د(څو تنو) مسكينانو، يا په برابرئ د هغه (طعام) روژه نيول دي، لپاره د دې چې وڅكي سختي د عمل خپل، عفوه كړېده الله له هغه شي چې پخوا تېر شوي دي، او هر هغه څوك چې بېرته وګرځېد (ښكار كولو ته په احرام كې) نو بدل به واخلي الله له ده څخه، او الله ښه قوي غالب دى (په انفاذ د احكامو)، څښتن (خاوند) د بدل اخيستو دى (له مجرمينو نه).

تفسير: يعنې مه وژنئ اې مؤمنانو ! ښكار كله چې تاسې په احرام كې اوسئ ! يعنې هر هغه حيوان چې له تاسې څخه ترهېدونكى وي، غوښه يې حلاله وي او كه حرامه، بې له ېيوس، غټ كارغه (بانښه)، لړم، موږك، او خوړونكي سپي، چې د دې پنځو واړو قتل په احرام كې هم روا دى، او په يو روايت كې د لړم په ځاى مار، او د سپي په ځاى لېوه راغلى دى، او هر څه چې مياشي، وروې، كنې، شمشتى او مېږې دى؛ څمونږ د حنفيانو په مذهب عفوه دى.

﴿وَمَن قَتَلَهُ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا﴾ «او هر هغه څوك چې ووژني دا ښكار له تاسې په قصد سره» له دغه قصد څخه دا مطلب دى، چې خپل احرام يې په ياد وي، او په دې هم مستحضر وي، چې د احرام په حالت كې ښكار جائز نه دى، دلته يې يواځې د «متعمّد» حكم وفرمايه، چې د ده د فعل سزا دا ده، او الله تعالى كوم انتقام چې آخلي هغه بېل دى، لكه چې ﴿وَمَنْ عَادَ فَيَنتَقِمُ اللَّهُ مِنْهُ﴾ سره يې تنبيه وفرمايله.

﴿عَفَا اللّٰهُ عَمَّا سَلَفَ﴾ «عفوه کړېده الله له هغه شي چې پخوا تېر شوي دي»، يعني د حکم له نزوله پخوا، يا لومړی له اسلامه د جاهليت په زمانه کې که چا داسې حرکت کړی وي؛ نو اوس الله تعالی څه سزا نه ورکوي، حال دا چې له اسلامه پخوا هم عربو د احرام په حالت کې داسې ښکار کول ډېر بد ګڼله، نو ځکه پر هغه هم مؤاخذه بېځايه نه وه، چې هغه شی چې ستاسې په زعم سره هم په جرائمو کې داخل وو؛ د هغه ارتکاب ولې کړی شوی دی؟.

﴿وَاللّٰهُ عَزِيزٌ ذُو انْتِقَامٍ﴾ او الله ښه قوي غالب دی په انفاذ د احکامو، څښتن (خاوند) د بدل اخيستو دی له مجرمينو څخه، يعني نه کوم مجرم د ده له قبضې څخه تښتېدلی شي، او نه الله جل جلاله د عدل او حکمت په اقتضاء له هغو جرائمو ځنې چې د سزا ورکولو وړ (لائق) دي تېرېدونکی دی (مګر هغه چا ته چې اراده وفرمايي دعفو کولو).

أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهُ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۖ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ۗ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٩٦﴾

حلال کړی شوی دی تاسې ته (ای مسلمانانو) ښکار د بحر او طعام د بحر لپاره د نفع اخيستو ستاسې، او لپاره د (نورو) مسافرانو (چې وچ يې کاندي)، او حرام کړی شوی دی په تاسې ښکار د وچې څو چې اوسئ تاسې محرمان، او ووېرېږئ تاسې له الله هغه چې هم ده ته به ورټول کړل شئ تاسې.

تفسير: «په احرام کې د درياب ښکار يعني ماهئ (کب) حلال دی، او د سيند خواړه يعني هغه ماهي چې له اوبو ځنې بېل او مړ شوی وي، او ده هغه نه وي نيولی؛ هم حلال دی، الله تعالی وفرمايل چې: دا مو ستاسې د فائدې له امله (وجې) روا کړی دی، بيا دې څوک داسې ګومان ونه کړي، چې دا د حج په طفيل حلال شوی دی، ويې فرمايل: چې د نورو ګردو (ټولو) مسافرانو د فائدې لپاره ماهي اګر که په تالاو کې وي، هغه هم د سيند د ښکار حکم لري، دا د هغه ښکار حکم معلوم کړی شوچې په احرام کې وی (د مکې معظّمې) په لوري قصد دی، چې په هغې او د هغې په شاوخوا کې تل ښکار کول حرام دي، بلکه هلته د ښکار وېرول او تښتول هم حرام دي».

جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ۚ

ګرځولې ده الله کعبه چې کوټه ده د بزرګۍ (او عبادت او دعزت) (باعث) د قيام (او انتظام) لپاره د خلقو، او مياشته بزرګه (هم) او مذبوحه نذر شوی کعبې ته (هم) او آمېل داره چارپايان (هم چې بيولی شي کعبې ته).

تفسير: کعبه شريفه د خلقو د ديني او دنيوي دواړو حيثيتونو د قيام او انتظام باعثه ده، حج اوعمره خو هغه عبادتونه دي؛ چې د دوی اداء مستقيما په کعبې شريفې پورې اړه (احتياج) لري، ليکن د لمانځه لپاره هم د قبلې استقبال شرط دی، په دې ډول سره کعبه شريفه د خلقو د ديني عباداتو د قيام سبب شوې ده، بيا کله چې په حج او نورو مواقعو کې له ګردو (ټولو) اسلامي ملکونو ځنې په لکونو مسلمانان هلته سره ټولېږي، نو دوی بېشماره تجارتي، سياسي، اخلاقي، مذهبي، او روحاني فوائد هم حاصلولی شي، الله تعالی دغه ځای «حرم آمن» ګرځولی دی، نو ځکه نه يواځې هلته انسانانو، بلکه نورو ساکښانو (ذي روحو) ته هم امن په برخه کېږي.

د جاهليت په زمانه کې چې ظلم او وينې تويول او فتنه او فساد خورول محض عادي او معمولي خبرو په شان وو، يوه سړي د خپل پلار په قاتل باندی هم په حرم شريف کې تعرض نشو کولی، له مادي حيثيته هر انسان د دې منظرې او ننداري له ليدلو څخه حيرانېږي، او په چرت (خيال) کې لوېږي، چې په ﴿بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ﴾ کې په دومره افراط سره

د خوړلو او ښنبلو او د فواکهو او مېوو د نفيسو اقسامو او نورو څخه دومره زيات شيان له کومو کومو ځايونو څخه راوړل کيږي؟ دا ګرد (ټول) حيثيتونه ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ کې معتبر کېدی شي.

محققانو په نزد د ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ مطلب دا دی چې: د کعبې شريفې مبارك وجود د کل عالم د قيام او د بقاء باعث دی، د دنيا ودانتيا تر هغه وخته پورې ده، څو بيت الحرام او د ده احترام کوونکي مخلوقات موجود وي، او کله چې الله تعالی داسې اراده وفرمايي، چې دې عالَم او د هغه کارخانې ته خاتمه ورکړي؛ نو له ګردو (ټولو) کارونو څخه د مخه همدا مبارك محل چې «بيت الله شريف» ورته وايي؛ پورته کاوه شي، لکه چې د ځمکې د جوړولو په وخت کې له ګردو (ټولو) څخه د مخه همدا متبرّك محل جوړ شوی وو، ﴿إِنَّ أَوَّلَ بَيۡتٖ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ﴾ الآيه.

د بخاري «رحمه الله» په حديث کې دي، چې يو تك تور حبشي (چې د «ذو السّويقتين» په نامه يې لقب ياد کړی دی) د کعبې د عمارت يوه يوه ډبره (ګټه) به ونړوي، اما تر څو پورې چې الله تعالی د دې جهان د نظام او قوام اراده لري، هيڅ يو زورور او خورا قوي قوم هم دکعبې شريفې د انهدام په مقصد کې نشي بريالي (کامياب) کېدی، او هيڅوك او هيڅ ملت په داسې ناپاکې ارادې له سره نشي کاميابېدی، د «أصحاب فيل» له قصې هر مسلمان خبر دی.

﴿ذَٰلِكَ لِتَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ مَا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَأَنَّ ٱللَّهَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٌ ٩٧﴾

دا (تېر بيان) لپاره د دې دی چې پوه شئ تاسې چې بېشکه الله عالم دی په هر هغه شي چې دی په آسمانونو کې، او په هر هغه شي چې دی په ځمکه کې، او بېشکه الله په هر شي باندې ښه عالم دی.

تفسير: يعنې کعبه شريفه ﴿قِيَٰمًا لِّلنَّاسِ﴾ ګرځول چې په هغې کې ديني او دنيوي مصالح رعايت شوي دي، او هغه خورا (ډېره) لويه پېشګويي چې په ظاهر کې له قياس څخه مخالفه ښکاري؛ د دې دليل دی چې په ځمکه او آسمانونو کې هيڅ شی د پاك الله جل جلاله له علم څخه وتلی نشي.

﴿ٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ وَأَنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ٩٨﴾

پوه شئ چې بېشکه الله ډېر سخت دی عذاب د ده (هغه چا ته چې تل د حرامو ارتکاب کوي) او بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ډېر مهربان دی.

تفسير: يعنې هغه حکمونه چې د احرام په حالت کې يا د کعبې شريفې د احترام او نورو په متعلق ورکړی شوي دي، که له هغوی څخه عمداً مخالفت وکړئ! نو وپوهېږئ! چې د الله تعالی عذاب ډېر سخت دی، او که په سهوې او نسيان سره تقصير در څخه وشي، نو په کفّاره او نورو سره يې تلافي وکړئ! بېشکه چې الله جل جلاله لوی ښښونکی او مهربان دی.

﴿مَّا عَلَى ٱلرَّسُولِ إِلَّا ٱلۡبَلَٰغُۗ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تُبۡدُونَ وَمَا تَكۡتُمُونَ ٩٩﴾

نشته په غاړه (په ذمه) د رسول څه مګر رسونه (د پيغام) ده، او الله عالم دی په هغه شي (هم) چې ښکاره کوئ يې تاسې او په هغه شي (هم) چې پټوئ يې تاسې.

تفسير: رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله تعالی د قانون په ابلاغ سره خپل فرض اداء کړ، او د حق تعالی حجت په ګردو (ټولو) بندګانو تمام شوی دی، اوس هر څه او هر هغه عمل چې په ظاهر او باطن کې وکړئ! الله تعالی ته معلوم دی، د حساب او جزاء په وخت کې به يوه يوه ذره هم ستاسې په مخ کې ښکاره او در اېښوده کيږي.

قُلْ لَّا يَسْتَوِى الْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِيْثِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ يٰۤاُولِى الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۰﴾

ووايه (اې محمده ! دوی ته) نه برابرېږي خبيث (ناپاک) او طيّب (پاک) اګر که ښه درښکاره شي تاته ډېروالی د خبيث (ناپاکه)، نو وويرېږئ ! تاسې له الله اې خاوندانو د (صافو) عقلونو لپاره د دې چې تاسې نجات ومومئ.

تفسير: طيب او خبيث يو شان نه دي، (او بيخي بد له ښو سره نه برابرېږي، يعنې حرام او حلال، ناپاک او پاک، کره او ناکره په اموالو کې او همداسې طالح او صالح، کافر او مسلم، کاذب او صادق په اشخاصو کې نه دي برابر، بلکه دغه حکم عام دی، او په هر څه کې جاري کيږي)، لږ شی چې طيب او حلال وي، له ډېرو خبيثو او حرامو شيانو څخه ښه او بهتر دی، عقلمند ته لازم دي، چې همېشه طيب او حلال شی اختيار کړي ! او د خرابو شيانو په لوري له سره ونه ګوري ! اګر که ډېر زيات او خورا (ډېر) ښه هم ښکاره شي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَآءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ؕ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۰۱﴾

اې هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې اې مؤمنانو !) مه کوئ تاسې پوښتنې له (هغو) شيانو که ښکاره کړی شي تاسې ته (ځواب د هغو) (نو) خپه به کړي تاسې (هغه ځواب)، او که پوښتنې وکړئ تاسې له (حاله) د هغو (شيانو) په داسې وخت کې چې نازل کاوه شي قرآن (يعنې وحيې راځي نو) ښکاره به کړی شي تاسې ته، عفوه کړېده الله له هغو (تېرو پوښتنو) او الله ښه بښونکی (د خطياتو) ډېر تحمل والا دی (په تأخير د عقوبت لپاره د انابت).

تفسير: په دې آيتونو کې تنبيه فرمايي چې هغو شيانو په متعلق فضول، چټي (بېکاره) او له موضوع څخه لرې سوالونه مه کوئ ! چې په هغو کې شارع تصريحا څه نه دي بيان کړي، همغسې چې د تحليل او تحريم په سلسله کې د شارع بيان د هدايت او بصيرت موجب دی؛ د هغه سکوت هم د رحمت او سهولت سبب دی، هر هغه شی چې الله تعالی په خپل حکمت او عدل سره حلال يا حرام فرمايلی دی، همغه حلال يا حرام شوی دی، او له هغه شي څخه يې چې سکوت فرمايلی دی؛ په هغه کې توسع او پراختيا شته، مجتهدانو ته د اجتهاد موقع پاتې او د هغه په فعل او ترک کې عامل آزاد دی.

په حديث کې دي چې «نبي کريـم صلی الله عليه وسلم ارشاد وفرمايه چې: «اې خلقو ! الله تعالی پر تاسې حج فرض کړی دی» يوه سړي پوښتنه وکړه: «آيا په هر کال کې يا رسول الله صلی الله عليه وسلم ؟» ويې فرمايل: «که ما ويلي وی (هو !) نو د هر کال لپاره به واجبېده، او بيا به تاسې د هغه په اداء نه قادرېدئ، په هر هغه شي کې چې زه تاسې آزاد پرېږدم؛ تاسې هم له ما څخې پوښتنې مه کوئ»، په يوه حديث کې يې فرمايلي: «په مسلمانانو کې هغه سړی لوی مجرم دی، چې د ده په پوښتنې داسې يو شی حرام شوی وي؛ چې هغه حرام نه وو»، په هر حال دا آيت د شرعي احکامو په نسبت د داسې بې ضرورته او له موضوع څخه د لرې سوالونو وَرُونه بندوي.

قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾

په تحقيق پوښتنه کړېوه د داسې خبرو يو قوم پخوا له تاسې ، بيا وګرځېدل پرې کافران (منکران).

**تفسير:** (لکه چې ثموديانو صالح علیه السلام ته ویلي وو: چې له کاڼي څخه مونږ ته اوښه راوباسه، او لکه چې بني اسرائیلو لپاره د غزا کولو له (اشموئیل) څخه پاچا غوښتی وو، کله چې (طالوت) پاچا شو؛ نو بیا یې غزا ونه کړه، او د عیسی علیه السلام نه د ده قوم خنچه طلب کړې وه)، په صحیح حدیث کې دي، چې پخواني قومونه د سوالونو له کثرته او د خپلو انبیاوو علیهم السلام سره د اختلاف له سببه هلاک شول.

مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّلٰكِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

نه دي روا کړي الله له هیڅ بحیرې او نه سائبې او نه وصیلې او نه حام، ولیکن هغه کسان چې کافران شوي دي؛ تړي پر الله دروغ (بهتان) او ډېر له دوی څخه نه پوهیږي (په حق او باطل).

**تفسير:** بحیره ـ سائبه ـ وصیله ـ او حام دا ګردې (ټولې) د جاهلیت د زماني له رسومو او شعائرو سره تعلق لري، مفسرینو د دغو په تفسیر کې ډېر اختلاف سره کړی دی، ممکن دی له دوی څخه د هر لفظ اطلاق په مختلفو صورتونو باندې وشي.

مونږ یواځې د سعید بن المسیّب «رحمه الله» تفسیر له صحیح بخاري «رحمه الله» څخه نقلوو:

(«بحیره» هغه ساکښ (ذي روح) وو چې شودې یې د بتانو په نامه کېدې، او له هغو څخه بل هیچا فایده نه اخیستله، «سائبه» هغه ساکښ وو چې د بتانو په نامه لکه د هندوانو «سانډ» خوشې کېده، «وصیله» هغه ښځه اوښه وه، چې پرله پسې یې څو داسې ښځی جونګکي (بچي) ځیږولي وي؛ چې په منځ کې به یې یو نر جونګکی (بچی) نه وو، او بیا به د بتانو په نامه خوشې ګرځېده، «حام» هغه نر اوښ وو، چې پر خاصو څو اوښو باندې به ختلی وو، او بیا به خوشې کېده).

علاوه پر دې چې دا شیان د شرک د شعائرو څخه وو، د هغو ساکښانو (ذي روحو) غوښې او شودې او سپرلی (سورلی) او نور شیان چې الله جل جلاله حلال کړي دي، او ښايي چې خلق له هغو څخه منتفع شي، پر هغو باندې د حل او حرمت قیود له خپل لوري ایښودل، ګواکې د خپل ځان لپاره د تشریع منصب تجویز کولو په شان وو.

د دغو مشرکینو بل لوی ظلم دا وو چې د خپل شرک رسوم یې د الله تعالی د خوښې او قربت ذریعه ګڼله، نو دغه ځواب داسې ورکړ شو، چې الله تعالی دا رسوم نه دي مقرر کړي، د دوی مشرانو په الله تعالی دا بهتان تړلی وو، چې اکثرو بې عقلانو او عامو خلقو هم هغه منلی وو، الغرض دلته یې تنبیه فرمایلې ده، همغسې چې فضول او بېکاره سوالونه او په شرعي احکامو کې تشدید او سختي پیښول جرم دی؛ له هغه څخه زیات لا دغه جرم دی، چې بې د شارع له حکمه یواځې په خپلو آراوو او اهواوو سره د حلالو او د حرامو تجویزونه وکړئ.

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

او کله چې وویل شي دوی ته چې راشئ تاسې هغه شي ته چې نازل کړی (رالېږلی) دی الله او (راشئ) په لوري (د حکم) د رسول (د الله) نو وایي دوی: بس دی مونږ ته هغه دین چې موندلي دي مونږ پر هغه (دین) پلرونه خپل، آیا (بس دی دوی ته) اګر که وو پلرونه د دوی چې نه به پوهېدل په هیڅ شي او نه به یې لاره موندله (حق ته).

تفسیر: د جاهلانو له ګردو څخې لوی حجت همدغه دی: «هغه کار چې مونږ ته له پلرونو او نیکه ګانو څخې راپاتې دی، آیا مونږ له هغه څخې څرنګه مخالفت وکړو؟» نو دوی ته وروښودل شول: «که ستاسې اسلاف له بې عقلی یا ګمراهی د هلاکت په ژوره کنده کې لویدلي وي، نو آیا تاسې هم د همغو پر قدم (پله) باندې درومئ؟».

شاه صاحب لیکي: «که د پلار حال معلوم وي، چې د حق تابع او د علم خاوند وو، نو د هغه لاره دې ونیسي ! که نه (د پلار متابعت) عبث دی»، یعني کیفما اتفق د ړندو په شان تقلید جایز نه دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا ٱهْتَدَيْتُمْ ۚ إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) لازمه ونیسئ پر ځانونو (اصلاح او ساتنه د) ځانونو او نفسونو خپلو، هیڅ زیان نه رسوي تاسې ته (ګمراهي د) هغه چا چې ګمراه شوی دی، کله چې په سمه صافه لاره اوسئ تاسې، (خاص) طرف د الله ته بېرته ورتله ستاسې دي د ټولو، نو خبر به کړي (الله په قیامت کې) تاسې په هغو عملونو چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې).

تفسیر: یعني که کفار د خپلو پلرونو او نیکونو له تقلیده، له دومره پنده او پوهې سره هم نه راګرځي؛ نو تاسې مه غمجن کېږئ ! زیات له دې نه خپل ځان مه ربړوئ (تکلیف کوئ) د بل چا له ګمراهی څخې تاسې ته هیڅ زیان نه در رسیږي !، په دې شرط چې تاسې پر سمه لاره ټګ وکړئ ! سمه لاره همدا ده چې انسان ایمان او تقوی غوره کړي، او له بدې څخه خپل ځان وژغوري (وساتي)، او د نورو د اصلاح او ژغورلو (بچ کولو) لپاره امکاني زیار (محنت) وکاږي، او کوښښ وکړي، که بیا هم خلق له بدو کارونو څخه لاس وانخلي، نو هغه هیڅ زیان نه لري.

که له دې څخې داسې یو مطلب واخیستل شي: «کله چې یو سړی خپل لمونځونه او روژې او نور واجبات په ښه ډول (طریقه) سره اداء کړي، نو د «امر بالمعروف نهي عن المنکر» له ترکه ده ته هیڅ یو تاوان نه رسیږي؛ بیخي غلط دی»، د «اهتداء» لفظ «امر بالمعروف» او د هدایت نورو ګردو (ټولو) وظائفو لره شامل دی، او له سره نه ښایي چې یو مسلمان سړی داسې ووایي: «د بل چا ګمراهي ما ته ضرر نه رسوي»، ځکه چې دغه خو پخپله ښه خبره نه ده، چې سړی د بل له منکره مانع نشي.

اګر که په دې آیت کې د خبرې مخ د مسلمانانو په لوري دی، لیکن په هغه سره د هغو کفارو تنبیه هم مقصود ده، چې د خپلو پلرونو او نیکونو د حق له لارې څخې کاږه شوي هم وي؛ نو بیا هم تاسې عمداً د هغوی پیروي کوئ؟ ! ولې خپل ځانونه په دغه چټې (بېکاره) متابعت سره د هلاکت په کنده کې اچوئ؟ ! اوس هغوی پر برېدئ ! او د خپلو عاقبتونو په فکر کې ولوېږئ ! او په خپلو ګټو او نقصانونو په ښه شان وپوهېږئ ! که پلرونه او نیکونه ګمراهان وي، او د دوی اولاده پر خلاف د هغوی پر سمه لاره ټګ وکړي؛ نو د پلار او نیکه نه داسې مخالفت اولادې ته له سره مضر نه دی، داسې خیالات بیخي ناپوهي او جهالت دی چې: «په هیڅ یوه حال کې اولادې ته نه ښایي چې د پلار او نیکه له طریقې څخه خپل قدم چپ او مخالف کېږدي، که نه پوزه به یې پرې شي؟».

عقلمنو لره ښایي چې د انجام خیال ولري ! ځکه چې وړاندې او وروسته د الله تعالی په مخ کې ټول سره یو ځای وړاندې کېدونکي دي، او هلته به له هر چا سره خپل عمل مل وي، او خپله جزا به ومومي، او خپل کړلي به ریبي، ﴿إِلَى ٱللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا﴾ الآیه ـ «خاص طرف د الله ته بېرته ورتله ستاسې دي د ټولو، نو خبر به کړي الله په قیامت کې تاسې په هغو عملونو چې وئ تاسې کول به مو» یعني هغه چې ګمراه پاتې شوي، او هغه چې لاره یې موندلې؛ د هغو ټولو نېک او بد عملونه او نتائج به هغو ته ورمخامخ کېږي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ
أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ الْمَوْتِ ۚ تَحْبِسُونَهُمَا مِن بَعْدِ
الصَّلَاةِ فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهِ ثَمَنًا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ اللَّهِ إِنَّا إِذًا
لَّمِنَ الْآثِمِينَ ﴿١٠٦﴾

اې هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعني اې مؤمنانو !) شهادت په منځ ستاسې كې كله چې حاضر شي يوه د ستاسې ته (علامې د) مرګ په وخت د وصيت كې (شهادت) د دوو تنو دى، چې دواړه خاوندان د عدل (انصاف) وي له تاسې (مسلمانانو) څخه، يا دوه تنه نور شاهدان غير له تاسې (مسلمانانو يعنې د غير مسلم)، كه تاسې سفر مو كاوه په ځمكه كې، بيا ورسيږي تاسې ته مصيبت د مرګ (هسې دوه تنه نور) چې بندوئ به تاسې دغه دواړه وروسته له لمانځه (د ماز يګر)، نو قسم دې وكړي دواړه په الله كه شكمن يئ تاسې (په شهادت د دوى كې او وايې به): نه بدلوو په دې قسم سره مال اګر كه وى دا (مشهود له) خاوند د خپلوى (هم) او نه پټوو مونږ شاهدي د الله، بېشكه مونږ په وخت د پټولو د شهادت كې خامخا له ګناهګارانو به يو.

تفسير: په دې آيتونو كې يې د وصيت ډېرې ښې طريقې تلقين فرمايلې دي، يعنې كه مسلمان د مړ كېدلو په وخت كې خپل مال او نور شيان بل چا ته حواله كړي، نو دا بهتره ده چې دوه معتبره مسلمانان دې پرې شاهدان ونيسي ! كه مسلمانان پيدا نشي، لكه چې په سفر يا نورو مواقعو كې داسې اتفاق ولويږي؛ نو دوه كافران دې «وصي» ودرول شي !، بيا كه وارثانو ته شبهه ولويږي، چې دغو كسانو به څه مال پټ كړى وي، او وارث پرې دعوى وكړي، او د دغې دعوى لپاره شاهدان ونه لري؛ نو هغه دواړه كسان دې قسم وخوري چې مونږ هيڅ نه دي پټ كړي، او مونږ د كومې طمعې او قرابت له سببه دروغ نشو ويلى، او كه يې ووايو نو ګناهګار به يو.

فَإِنْ عُثِرَ عَلَىٰ أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا إِثْمًا فَآخَرَانِ يَقُومَانِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْأَوْلَيَانِ
فَيُقْسِمَانِ بِاللَّهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِن شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَا إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الظَّالِمِينَ ﴿١٠٧﴾

نو كه اطلاع حاصله كړه شوه پر دې چې بېشكه دا دواړه مستحق شوي دي د ګناه (د حقې خبرې د پټولو په سبب) نو نور دوه شاهدان دې ودرېږي په ځاى د دې دواړو (حلف ته، او كه يو تن وي هم څه مضايقه نه لري) له هغو كسانو چې ثابت شوى دى پر هغو (وصيت يا شاهدي دغسې دوه تنه نور چې) قريبان وي (ميت ته يا غوره وي)، نو قسم دې وكړي دا دواړه په الله چې: خامخا شاهدي ځمونږ ښه حقه (او رښتيا) ده له شاهدۍ د هغو (لومړنيو) څخه، او څه تجاوز مو نه دى كړى، بېشكه مونږ په دغه وخت (د تجاوز) كې خامخا له ظالمانو به يو.

تفسير: يعنې كه له قرائنو او آثارو څخه د وصيانو كوم قسم (لوړه) دروغ ښكاره شي، او دوى د شرعي شهادت په ذريعه خپل صداقت ثابت نشي كړى، نو د ميت وارثانو ته دې قسم وركړى شي، چې دوى ته د وصيانو د دې دعوى د واقعيت هيڅ علم او خبر نشته، او دا چې دغه شاهدي د وصيانو له شهادت څخه زياته أحق بالقبول (يعنې د قبول لپاره ډېره مستحقه ده) ده.

ددې آيتونو شأن نزول دا دى: يو مسلمان چې (بُديل) نوميده له دوو سړيو (تميم) او (عُديّ) سره «چې په هغه وخت كې نصرانيان وو» د تجارت په قصد (شام) ته رهي (روان) شول، كله چې (شام) ته ورسېدل؛ (بديل) رنځور شو، او

د خپل مال فهرست (نوملیک) یې ولیکلو، او په خپلو اسبابونو کې یې کېښود، او د هغه نوملیک اطلاع یې خپلو دغو دواړو ملګرو ته ور نه کړه.

کله چې مرض یې شدت وکړ، نو ده خپلو دغو دواړو نصراني ملګرو ته وصیت وکړ، چې ځما دا ټول اسباب ځما وارثانو ته ورسوئ! لکه چې دوی هغه ګرد (ټول) اسبابونه له ځانه سره یوړل، او د ده وارثانو ته یې وروسپارل، مګر یو د سپینو زرو جام یې (چې پرې د سرو زرو ملمع او نقش او سینګار وو) ترې ستون کړ.

کله چې د وارثانو په لاس کې هغه فهرست (چې د اسبابونو په منځ کې وو) هم ولوېد؛ دوی له هغو وصیانو څخه پوښتنه وکړه چې: «آیا مړي د دې مالونو له منځه څه مال خرڅ کړی هم دی؟ یا یې ناروغي ډېره ځنډېدلې (اوږده شوې) او پرې دارو درمل شوي؟ او څه مال یې په معالجه کې لګېدلی دی؟» دوی د دې دواړو سوالو ځواب په نفي سره ورکړ.

آخر دا معامله د فخر کائنات رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور کې تقدیم شوه، څرنګه چې له وارثانو سره شاهدان نه وو، نو هغو دې دواړو نصرانیانو ته په دې الفاظو سره قسم ورکړ، چې «مونږ د هغه مړي په مال کې هیڅ ډول خیانت نه دی کړی، او نه مو څه شی له هغه څخه پټ کړي دي»، نو د دې قسم خوړلو له امله (وجې) د دغو وصیانو په ګټه فیصله وکړی شوه.

څه موده وروسته دا خبره څرګنده شوه، چې دوی هغه جام په یو زرګر باندې په مکه معظمه کې خرڅ کړی (پلورلی) دی، د دغې خبرې پوښتنه چې له دوی څخه وشوه؛ نو دوی وویل چې: «هغه مو له (بدیل) څخه په بیع اخیستی (پېردولی) وو، کله چې د پېرودلو شاهد نه وو موجود، نو ځکه مو په هغه باندې په خپل اول اظهار کې اقرار ونه کړ، خو ځمونږ تکذیب ونه کړ شي».

د «بدیل» وارثان بیا د رسول الله مبارک په حضور مشرف شول، او خپله دعوی یې مرافعه کړه، دا ځلې د اول صورت په عکس وصیان د شراء «د پېرودلو» مدّعیان وو، او وارثانو له هغه ځنې انکار درلود (لرلو)، او د شاهدانو د نشتوالي له سببه د وارثانو له منځه هغو دوو کسانو چې لـه میت سره یـې ډېر نژدې قرابت درلـود (لرلو) قسم یاد کړ؛ «چې هغـه جام د هغه میت مملوک وو، او دې دواړو نصرانیانـو پـه دروغـو سره قسم یاد کړی دی»، په پای (آخر) کې هغو نصرانیانو همغه قیمت (یو زر درهمه) د (بدیل) وارثانو ته ورکړې چې له زرګر څخه یې د هغه جام په بدل کې اخیستې وې.

ذٰلِكَ اَدۡنٰۤى اَنۡ يَّاۡتُوۡا بِالشَّهَادَةِ عَلٰى وَجۡهِهَاۤ اَوۡ يَخَافُوۡۤا اَنۡ تُرَدَّ اَيۡمَانٌۢ بَعۡدَ اَيۡمَانِهِمۡ‌ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاسۡمَعُوۡا‌ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡفٰسِقِيۡنَ ﴿۱۰۸﴾

دا (تېر حکم چې رد کول د قسم دي پر وارثانو) ډېر نژدې دی دې ته چې راتله وکړي دا (شاهدان) په شاهدۍ سره په هغه شان چې حق دی د دې، او (نژدې دی دې ته) چې وویرېږي دوی له دې نه چې بېرته به رد کړل شي قسمونه (په ورثه وو) پس له قسمونو د دغو (وصیانو)، او وویرېږئ تاسې له الله (او په دروغو قسم مه کوئ!) او واورئ تاسې (د الله احکام ـ د زړه په غوږونو سره)، او الله نه ښیي سمه صافه لاره (د خیر او د جنت) قوم فاسقانو ته.

تفسیر: یعنې که وارثانو ته شبهه پیدا شي نو د قسم ورکولو حکم ورته شته، خو د قسم له وېرې اول دروغ ونه وایي، بیا که د دوی خبرې دروغ ښکاره شي؛ نو ورته دې قسم وخوري، دا هم د دې له امله چې دوی هم په قسم کې (ټګي) ونه کړي، او وپوهېږي چې همدا قسم پر مونږ هم اوړي.

﴿وَاتَّقُوا اللّٰهَ﴾ الآيه ـ «او وويرېږئ تاسي له الله» ځکه چې د الله تعالى د نافرماني کوونکو انجام رسوايي او ذلت دی، او دوی د حقيقي بري او کاميابۍ مخ له سره نشي کتلی.

يَوْمَ يَجْمَعُ اللّٰهُ الرُّسُلَ فَيَقُوْلُ مَاذَآ اُجِبْتُمْ

(ياد کړئ) هغه ورځ چې جمع به کړي الله ټول رسولان پس وبه وايي (الله رسولانو ته) چې څه ځواب درکړی شوی وو تاسې ته (له طرفه د امتيانو ستاسې په دنيا کې چې بلل تاسې دوی توحيد ته).

تفسير: دغه پوښتنه په محشر کې د ګردو په مخ کې له انبياوو عليهم السلام څنې کيږي، يعنې لکه چې تاسې د حق تعالى له حق پيغام سره خلقو ته تللي وئ، نو دوی ستاسې دهغه دعوت ځواب څرنګه درکړی دی؟ او تر کومه ځايه د دعوت اجابت ته حاضر شوي دي؟.

قَالُوْا لَا عِلْمَ لَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ ۝۱۰۹

وبه وايي (ګرد رسولان الله ته): نشته هيڅ علم مونږ ته (ستا د علم په مخکې يا الله !) بېشکه ته چې يې هم ته يې لوی عالم په غيبو (اسرارو هم، نو بې له ويلو څمونږ هم د دوی منل او نه منل درښکاره دي).

تفسير: د ابن عباس «رضي الله تعالى عنه» په نزد د ﴿لَا عِلْمَ لَنَا﴾ مطلب دا دی چې ای ربه ! ستا د کامل او محيط علم په مقابل کې څمونږ هيڅ پوه او علم نشته، ګويا دا الفاظ د الله سره د ادب په ډول وايي»، د ابن جريج «رحمه الله» په نزد ﴿لَا عِلْمَ لَنَا﴾ څخه مراد دا دی، چې مونږ ته نه دی معلوم چې وروسته له مونږ څنې هغو څه کړي؟ او څه يې نه دي کړي؟ ځکه چې مونږ يواځې د دوی په هغو افعالو او احوالو خبرېدلو چې دوی څمونږ په مخکې ظاهرا کول، د بواطنو او سرائرو علوم خو يواځې له تا علاّم الغُيوب سره دي.

د همدې سورت په راتلونکې (۱۶) رکوع کې د مسيح عليه السلام له ژبې نه هغه ځواب چې په (۱۱۷) آيت کې نقل شوی دی: ﴿وَكُنْتُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا مَّا دُمْتُ فِيْهِمْ﴾ دا وروستی معنی تاييدوي، او په صحيح حديث کې دي، کله چې په حوض باندې د ځينو په باره کې څمونږ رسول کريم صلى الله عليه وسلم داسې وفرمايي چې: «هؤلاء أصحابي !»، نو داسې ځواب به اوري «لا تدري ما أحدثوا بعدك؟» «نه يې خبر چې له تا څخه وروسته دوی څه حرکات کړي دي».

اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِيْ عَلَيْكَ وَعَلٰى وَالِدَتِكَ ۘ

(ياد کړئ) هغه وخت چې وبه فرمايي الله: ای عيسی ځوی د مريمې ياد کړه احسان ځما پر تا او په مور ستا (چې غوره کړې مې وه پر ښځو د زمانې خپلې).

تفسير: اول پر اولاد احسان کول من وجه په مور باندې احسان دی، هغو نورو ظالمو خلقو چې پر صدّيقې بي بي مريمې تهمتونه کول، حق تعالى د دې د برائت او نزاهت لپاره عيسى عليه السلام برهان مبين وګرځاوه، او د مسيح عليه السلام له تولده پخوا او وروسته يې بي بي مريمې ته عجيبې او غريبې نښې ورښکاره کړې، چې ګردې د دوی د تقويې او تسکين باعث شوي دي، دغه احسانات بلا واسطه پر دی باندې وو.

إِذْ أَيَّدتُّكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ۖ وَإِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ ۖ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي فَتَنفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي ۖ وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي ۖ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتَىٰ بِإِذْنِي ۖ

کله چې مې قوت درکړی وو تاته (ای عیسی) په روح القدس (جبریل) سره، چې خبرې به دې کولې له خلقو سره په مهد (د مور په غېږ یا په ځانګو یا په طفولیت) کې او په حال د کهولت (پوره عمر) کې، او کله چې مې در زده کړ تاته کتاب (لیکل) او حکمت (د شرعي احکامو د ژورو خبرو علم) او تورات او انجیل، او کله چې جوړه به دې کړله له خټو ځنې په مثل د صورت د مارغه په اذن (حکم) ځما، پس پو کول به دې په هغه صورت کې؛ پس شو به هغه (هیئت) مارغه په اذن (حکم) ځما، او روغول به دې مورزادي ړوند او برګ (پیس) په اذن (حکم) ځما، او کله چې را ایستل به دې مړي (له قبرونو څخه او ژوندي کول به دې) په اذن (حکم) ځما.

تفسیر: تعجب دی چې عیسایان د مسیح علیه السلام د «تکلم في المهد» هیڅ ذکر نه دی کړی، هو ! دا یې لیکلي دي چې مسیح علیه السلام په دولس کلنی کې د یهودانو په مخ کې داسې حکیمانه دلائل او براهین بیان فرمایلي دي؛ چې ګرد علماء ترې عاجز او مبهوت پاتې شوي دي، او سامعینو په شاباس او آفرین ویلو باندې پیل (شروع) وکړ، هسې خو په «روح القدس» سره حسب المراتب ذکر د انبیاوو علیهم السلام بلکه د ځینو مؤمنانو تأیید هم کیږي، لیکن عیسی علیه السلام ته چې وجود یې د «جبرئیلیه نفخې» څخه شوی دی، کوم خاص قسم فطري مناسبت او تایید حاصل دی؛ چې هغه د انبیاوو د تفضیل په صدد کې بیان شوی دی: ﴿تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۘ مِّنْهُم مَّن كَلَّمَ اللَّهُ ۖ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجَاتٍ ۚ وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ﴾ (د ۳ جزء ابتداء د البقره سورت د ۲۵۳ آیت ۳۳ رکوع).

له هر رسول سره د الله تعالی څه امتیازي معاملې وي، چې د هغو د عللو او اسرارو احاطه همغه علّام الغُیوب سره وي، همدغو امتیازاتو ته د علماوو په اصطلاح «جزئي فضائل» ویل کیږي، له داسې شیانو ځنې کلي فضایل نه ثابتیږي، څه چې ترې «الوهیت» ثابت شي !.

په ﴿وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ﴾ کې د «خلق» لفظ محض په صوري او حسّي لحاظ استعمال کړی شوی دی، که نه حقیقي خالق خو له ﴿أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ﴾ ځنې ما سوا بل هیڅوك نه دي، د همدې له امله د ﴿بِإِذْنِي﴾ تکرار څو څو ځلې راغلی دی، او په «آل عمران» کې د مسیح علیه السلام له ژبې د ﴿بِإِذْنِ اللَّهِ﴾ تکرار کړی شوی دی، په هر حال هغه خوارق چې په دې آیتونو او د دې نه پخوا پـه «آل عمـران سـورت» کـې مسیح علیه السلام ته منسوب شوي دي؛ له هغو ځنې انکار یـا پکې تحریف یواځې د همغه ملحد کـار کېدی شي، چـې «آیات الله» د خپل شخصي عقل تابع ګرځول غواړي، باقي همغه خلق چې د قدرت په قانون نامه سره د «خوارقو او معجزاتو» څخه انکار کوي؛ د هغه ځواب په یوه مستقل مضمون کې ورکړی شوی دی، چې د هغه له مطالعې څخه ان شآء الله د ټولو شکونو او شبهاتو ازاله کېدی شي.

وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِي إِسْرَائِيلَ عَنكَ إِذْ جِئْتَهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿۱۱۰﴾

او کله چې مې بند کړ (شر د) بني اسرائیل له تا نه (ای عیسی چې ستا د قتل اختیار یې کړی وو) کله چې راوړی وو تا دوی ته واضح دلائل نو وویل هغو کسانو چې کافران شوي وو له دوی ځنې: چې نه دي دغه معجزې ستا مګر سحر دی ښکاره (هر چا ته).

تفسير: معجزاتو او فوق العاده تصرفاتو ته به يې سحر جادو (کوډې) ويلې، او په پای (آخر) کې يې د مسيح عليه السلام وژلو ته ملا وتړله، حق تعالی پـه خپل لطف او کرم سره مسيح عليه السلام آسمان ته وخېژاوه، به دې ډول يهودان د خپل ناپاک مقصد په پای (آخر) ته رسولو کې ناکام شول.

وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ آمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي قَالُوا آمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ ﴿١١١﴾
إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً
مِنَ السَّمَاءِ ۖ قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾

او کله چې په زړونو کې مې ور واچول (او امر مې وکړ د عيسی په ژبه قوم د عيسی) حواريونو ته چې ايمان راوړئ تاسې په ما (چې ستاسې الله يم)، او په رسول ځما (چې عيسی دی، نو) وويل حواريونو چې: ايمان مو راوړی دی (په الله او عيسی)، او شاهد اوسه (ای عيسی) په دې چې بېشکه مونږ مسلمانان يو (غاړه اېښودونکي حکم د الله ته). کله چې وويل حواريونو چې ای عيسی ځوی د مريمې ! آيا قبلوي رب ستا (دا سوال) چې نازلې کړي پر مونږ ډکې خونچې له (طرفـه د) آسمانه، وويل (عيسی): ووېرېږئ له الله (په داسې سوالونو کې) که يئ تاسې مؤمنان (په قدرت د الله او نبوت ځما).

تفسير: ﴿يَسْتَطِيعُ﴾ يې ځکه وويل؛ چې ستا په رعايت او دعاء مونږ ته د «خرق عادت» په ډول نه دی معلوم چې داسې کولی شي؟ که نشي کولی؟.

﴿مَائِدَةً مِنَ السَّمَاءِ﴾ «ډکې خونچې له طرفه د آسمانه» يعنې د آسمان له لوري بې له زحمته روزي راورسېږي، دا ضروري نه ده چې هغه دې فقط د جنت له دستر خوان څخه وي.

﴿قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ﴾ «وويل عيسی: چې ووېرېږئ له الله په داسې سوالونو کې که يئ تاسې مؤمنان په قدرت د الله او نبوت ځما»، ايمانداره بنده ته دا لايقه نه ده، چې داسې فوق العاده غوښتنې وکړي، او پاک الله وازمايي، اګر که د ده له لوري د ډېرې زياتې مهرباني اظهار هم وشي، ښايي چې روزي په همغو ذرائعو سره وغوښتله شي، چې د الله له خوا د هغه د تحصيل لپاره مقررې شوي دي، کله چې بنده له الله تعالی څخه ووېرېږي او تقوی اختيار کړي، او يواځې په الله تعالی باندې اعتماد او اعتقاد ولري، نو حق تعالی ده ته له داسې ځايه روزي ور رسوي، چې له هغه ځايه ئې وهم او ګمان هم نه وي:

﴿وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ الآيه ـ (۲۸ جزء د الطلاق سورت (۲ او ۳) آيت (۱) رکوع).

قَالُوا نُرِيدُ أَنْ نَأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا وَنَعْلَمَ أَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشَّاهِدِينَ ﴿١١٣﴾

وويل (حواريونو): اراده لرو مونږ ( په دغه سوال سره) چې وخورو له (خوړو د) دغې (خونچې) او مطمئن شي (په دغه خوراک سره) زړونه ځمونږ، او پوه شو مونږ په دې چې په تحقيق رښتيا ويلي وو تا مونږ ته (چې زه رسول الله يم د دې معجزې په اظهار سره) او اوسو مونږ پر دې (خونچې) له شاهدانو څخې (هغوی ته چې غائبان دي يا له کتونکو).

تفسير: يعنې د ازموينې لپاره يې نه غواړو، بلکه د برکت په اميد يې غواړو چې له غيبه بې محنته روزي راورسېږي، خو د زړه په اطمينان او ډاډينه سره د الله تعالی په عبادت کې لګيا شو.

(نو کله چې معلوم شو چې دغه سوال د حواریونو د تعنّت او سرکشی له پلوه نه دی، بلکه د یقین د زیاتوالي لپاره دی نو)؛

قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ تَكُونُ لَنَا عِيدًا لِّأَوَّلِنَا وَآخِرِنَا وَآيَةً مِّنْكَ وَارْزُقْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿١١٤﴾

وویل عیسی ځوی د مریمې ای الله ! ربه ځمونږ را نازله (را ښکته) کړه پر مونږ باندې دکه خونچه له (طرفه د) آسمانه چې شي (وخت د نزول د دغې دکې خونچې) مونږ ته اختر لپاره د لومړنیو ځمونږ او وروستنیو ځمونږ او (بل دا چې شي دغه خونچه) دلیل له تا نه (ستا په قدرت او ځما په نبوت او صداقت)، او روزي راکړه مونږ ته، او هم ته یې (خیر) غوره د روزي ورکوونکو.

تفسیر: یعني هغه ورځ (چې مائده له آسمانه پکې نازله شي) ځمونږ د پخوانیو او وروستنیو په حق کې به اختر شي، چې تل ځمونږ قوم هغه ورځ د یادګار په ډول اختر وګرځوي، له دې تقریر سره سم د ﴿تَكُونُ لَنَا عِيدًا﴾ اطلاق داسې شو لکه چې د ﴿الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ﴾ د آیت په متعلق په (بخاري) شریف کې د یهودانو دغه مقوله نقل شوې ده «إنكم تقرؤون آية لو نزلت فينا لاتخذناها عيدا» همغسې چې ددې آیت له اختر ګرځولو ځنې مطلب د هغه آیت د «یوم النزول» عید ګرځول دي (کما هو مصرّح في الروایات الأُخر) پر همدې باندې د مائدې اختر هم قیاس کړئ.

قَالَ اللَّهُ إِنِّي مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۖ فَمَنْ يَكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَإِنِّي أُعَذِّبُهُ عَذَابًا لَّا أُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ ﴿١١٥﴾

وفرمایل الله: زه نازل کوونکی یم د دې خونچې پر تاسو، نو هر څوک چې ناشکري وکړي وروسته (له نزوله د دې خونچې) له تاسې ځنې؛ نو بېشکه زه عذاب ورکوم هغه ته داسې عذاب چې نه په عذابوم په هغه سره بل هیڅ یو له (نورو) مخلوقاتو.

تفسیر: هر کله چې نعمت فوق العاده او عجیبه وي، نو د هغه د شکر ګذارۍ تاکید هم ښایي چې له معمول ځنې زیات وي، او د هغه په نا شکرۍ هم فوق العاده او عجیبه عذاب راتلونکی.

ځیني وایي: چې هغه مائده تر (۴۰) ورځو پورې نازلېده، خو ځینو پرې نا شُکري وکړه، یعني داسې حکم شوی وو، چې له هغې ځنې فقیر او مریض وخوري، خو له هغې ځنې مړو، روغو رمتو سړیو هم خوړله، بیا نژدې اتیا تنه له دوی ځنې بیزوګان او بد ځناوران شول، دا عذاب پخوا له دې نه پر یهودانو هم نازل شوی وو، وروسته له هغه بیا پر بل چا نه دی نازل شوی.

او ځیني وایي چې: دوی د دې تهدید له اورېدلو ځنې ووېرېدل او د هغې له غوښتنې څخه پښېمانه شول، او وې نه غوښتله.

وَإِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ أَأَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَٰهَيْنِ مِنْ دُونِ اللَّهِ ۖ قَالَ سُبْحَانَكَ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ ۚ إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ ۚ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ ۚ إِنَّكَ أَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿١١٦﴾

او کله چې وویل الله: ای عیسی ځوی د مریمې !آیا تا ویلي وو خلقو ته چې ونیسئ ما او مور ځما (دواړه) معبودان بې له الله نه ؟، وبه وایي (عیسی): چې پاکي ده تا لره (ای الله ! له شریکه)، نه ده

لايقه ما ته دا چې ووايم زه هغه خبره چې نشته ما ته حق (د ويلو د هغې)، که وم زه چې ويلې مې وي دا خبره؛ نو په تحقيق معلومه به وه تاته هغه خبره، تا ته معلوم دی هر هغه شئ چې په نفس ځما کې دی، او نه پوهېږمه زه په هغه شي چې په نفس ستا کې دی (له معلوماتو ستا)، بېشکه ته همدا ته يې لوی عالم پر غيبو (اسرارو هم).

مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ ۖ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿١١٧﴾

نه دي ويلي ما دوی ته (هيڅ شی) مګر هغه چې تا امر (حکم) کړی وو ماته په هغه سره، چې عبادت کوئ تاسې د الله؛ د رب ځما او رب ستاسې، او ومه زه (پر اقوالو او افعالو) د دوی باندې خبردار (څارونکی په موعظو سره) تر څو چې ومه زه په دوی کې، پس کله چې ونيولم تا زه کامـل (پـه بيولو سره آسمان ته) نو وې ته همدا ته څارونکی (خبردار) پر دوی، او ته پر هر شي باندې ښه ګواه ښه خبردار يې.

تفسير: ما ستا له حکمه د يوه ويښته په اندازه هم تجاوز نه دی کړی، ما به ولې د خپل الوهيت تعليم دوی ته کاوه؟ ! بالمقابل ما تش ستا د بندګۍ په لوري هغوی ته دعوت ورکاوه، او په صافو او ښکاره خبرو سره مې دوی ته د وحدانيت داسې ښوونه کوله چې: زما او ستاسې د ګردو رب (پالونکی) همغه يو الله تعالی دی چې «وحده لا شريک له» او يوائې د معبوديت وړ (لايق) دی.

لکه چې نن هم په (انجيل، بايبل) کې په دې مضمون ډېر صريح نصوص شته، نه يوائې دا چې ما مخلوق ته ستا په لوري د توحيد او عبوديت دعوت ورکړی دی، بلکه تر هغه پورې چې زه د دوی په منځ کې اوسېدم؛ د دوی د احوالو کتنه او پوښتنه مې په ښه شان سره کړې ده، څو کومه غلطه عقيده، يا بې موقعه خيال قائم نه کړي، کله چې د دوی په منځ کې ځما د قيام هغه موده چې ستا په علم کې مقدّره وه؛ پوره شوه، نو زه دې له دوی څخه واخيستم (کما يظهر من مادة التوفي ومقابلة ما دمت فيهم)، نو بيا يوائې ته د دغه احوال کتونکی او خبردار يې، زه د دې موضوع په نسبت هيڅ عرض نشم کولی.

تنبيه: د مسيح عليه السلام د موت (يا رفع الی السّماء) او نور بحث دې په (۳ جزء د «آل عمران» سورت په (۵۵) آيت ﴿إِنِّي مُتَوَفِّيكَ وَرَافِعُكَ إِلَيَّ﴾ (۶) رکوع) کې وکتل شي.

محقق شيخ الهند قدّس الله سرّه دلته د «فلما توفّيتني» ترجمه «تا زه واخيستلم» سره کړې ده، چې د محاورې په اعتبار «په موت» او په «رفع الی السماء» دواړو باندې صادقېدی شي، ګواکې تنبيه يې وکړه چې نه د «توفّی» لفظ لپاره «موت» لازم دی، او نه خاص هغه «توفّي» چې د موت په صورت دی؛ په دغه تر بحث لاندې مباحثه کې څه مداخله لري.

إِن تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۖ وَإِن تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١١٨﴾

که عذاب ورکړې ته (ای الله !) دوی ته نو بېشکه دوی بندګان ستا دي (او ته يې مالک يې نو نشته هيڅ اعتراض پر تاسې)، او که بخښنه وکړې دوی ته نو بېشکه ته همدا ته يې ښه غالب (په انفاذ د احکامو) لوی حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوې).

تفسير: يعني ته په خپلو بندګانو ظلم او بېځايه سختي نه کوي، که دوی ته سزا ورکړې نو په عين عدل او حکمت بنا ده، او که فرضاً دوی وبښې؛ نو دغه عفوه هم عين لطف او مهرباني ده، او د عجز او سفاهت له کبله نه ده، ځکه چې ته «عزيز» زبردست او غالب يې !، او هيڅ کوم مجرم ستا له قبضې څخه نه وتلی او نه تښتېدلی شي، او ته په هر چا او هر ځای قوت، قدرت، او قابو لرې، او څرنګه چې «حکيم» حکمت والا يې؛ نو دا هم هيڅېرې امکان نه لري چې کوم مجرم به بې موقع خوشې کړې، په هر حال هر هغه فيصله چې ته دمجرمانو په حق کې وفرمايې؛ هغه بيخي ستا په حکمت او قدرت مبني ده.

څرنګه چې د مسيح عليه السلام دا کلام به په محشر کې ويل کيږي، چې هلته به دکفّارو په حق کې هيڅ کوم شفاعت او استرحام او نور شيان نه وي، نو ځکه مسيح عليه السلام د «عزيز حکيم» په ځای «غفور رحيم» او نورو صفاتو اختيار ونه کړ، د دې په خلاف ابراهيم عليه السلام په دنيا کې د خپل پروردګار په حضور کې عرض کړی وو: ﴿رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ ۖ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي ۖ وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ «ای پروردګاره ! دې بتانو ډېر خلق ګمراهان کړي دي، نو هر يو له دوی ځنې چې ځما متابعت وکړي؛ هغه ځما امت دی، او هر څوک چې له ما ځنې غاړه وغړوي؛ نو بيا ته غفور او رحيم يې»، يعنې اوس هم موقع ده، چې ته هغوی ته په خپل رحمت سره وروسته له دې نه د توبې او د رجوع الى الحق توفيق وروبښې ! او پخواني ګناهونه ورمعاف کړې !.

قَالَ اللَّهُ هَٰذَا يَوْمُ يَنفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ۚ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۚ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿١١٩﴾

وبه فرمايي الله (په قيامت کې): دا ورځ د دې ده چې نفع به رسوي صادقينو ته صدق د دوی (چې په دنيا کې يې کړی وي)، (مقرر) دي دوی ته (هسې) جنتونه چې بهيږي له لاندې (د ونو او ماڼيو) د هغو ويالې (د اوبو، شودو، شرابو، او شاتو)، تل به وي دوی په هغه کې هميشه، راضي شوی دی الله له دوی نه (په طاعت سره)، او راضي دي دوی له الله څخه (په موندلو د ثواب)، دا (خلود او رضوان) بری دی ډېر لوی.

تفسير: يعني هغه کسان چې اعتقاداً او قولاً او عملاً رښتين او صادقان پاتې دي، لکه مسيح عليه السلام هغوی ته به د دوی د صداقت ثمره نن ورځ وررسيږي (چې هغه د جنت خلود او د رب العزت لقاء او رضا ده، اللهم ارزقنا !)، يعنې لويه کاميابي د الله تعالى رضا ده، او جنت هم د دې له امله (وجې) مطلوب دی؛ چې د الله تعالى د رضا محل دی.

لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٢٠﴾

خاص الله لره دی ملک (سلطنت) د آسمانونو او (سلطنت د) ځمکې او (سلطنت) د هغو شيانو چې په دوی کې دي، او الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځينې يې صادق ته ثواب او کاذب ته عذاب ورکول دي).

تفسير: يعني له هر وفادار او مجرم سره همغه معامله کيږي؛ چې د يوه مطلق شاهنشاه له عظمته او جلاله سره وړ (لائق) او مناسب وي.

تمت سورة المائدة بفضل من به الإعاذة وإليه الإعادة ونسأله فى البيان حسن الإفادة والإجادة وفى البنان نعم الإفازة والإنارة.

# سُورَةُ الْأَنْعَامِ

د «الأنعام» سورت مکي دی، په استثناء د نهو آیتونو چې د ځینو علماوو په نزد مدني دي، او هغه (۲۰، ۲۳، ۹۱، ۹۳، ۱۱۴، ۱۴۱، ۱۵۱، ۱۵۲، ۱۵۳) دي، یو سل او پنځه شپېته آیتونه او شل رکوع لري.

وروسته د «الحجر» له سورته نازل شوی دی، په تلاوت کې (۶) سورت دی، او په نزول کې (۵۵) دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوْرَ ۥ ثُمَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ①

ګردې (ټولې) ثناوې او ستاینې (د کمال صفتونه) خاص هغه الله لره دي، چې پیدا کړي یې دي آسمانونه (بې له نمونې) او ځمکه (بې له مادې) او پیدا کړي یې دي (رنګارنګ) تیارې او رڼا، بیا (هم) هغه کسان چې کافران شوي دي؛ د رب خپل سره برابروي (نور شیان په عبادت کې یا د الله له عبادت څخه د غیر الله عبادت ته عُدول کوي).

**تفسیر:** مجوسیان دنیا ته دوه خالقان معبودان دروي، «یزدان» یې د خیر خالق او «اهریمن» چې د شر خالق یې ګڼي، او دواړه به یې د نور او ظلمت په لقب سره ملقبول، د (هندوستان) مشرکان په درې دېرش کروړو معبودانو قائلان دي، (چې هر یو خپل بت معبود بولي)، د (اریه سماج) فرقه سره له دې چې د توحید ادعا کوي، «ماده» او «روح» هم لکه الله غوندې غیر مخلوق او ازلي بولي، او الله تعالی د تکوین او تخلیق او په څه نورو صفاتو کې دې دواړو ته (نستغفر الله) محتاج ګڼي.

عیسایان د پلار او ځوی د توازن او تناسب لپاره بالآخره د دریو نه یو، او یو له دریو نه مشهوره عقیده غوره کړه.

یهودانو د الله تعالی لپاره داسې صفات تجویز کړل، چې یو عادي انسان هم نه یوائې (العیاذ بالله) له هغه سره انډول او برابر بلکه بهتر هم کېدی شي.

د عربو مشرکانو د معبودانو په تقسیم کې تر دې ځایه پورې خپل سخاوت وښود، چې ښایي د دوی په نزد د یوه غره هره یوه ډبره (ګټه) هم د انسانانو د معبود ګرځېدلو صلاحیت ولري، او هر یوه موجود ته یې له الوهیت څخنې څه نا څه برخه ورکړه، او د عبادت او استعانت او په نورو وختونو کې به دوی د الله په ځای هغوی درول.

حال دا چې د الله تعالی پاک ذات د ګردو (ټولو) کمالي صفاتو د جامعیت شتوالی او د هر راز ښېګڼو (فائدو) د خالقیت له امله (وجې) د ګردو (ټولو) ستاینو (صفتونو) او هر راز حمد او ثنا یې د نورو له شرکته وړ (لایق) او مستحق دی، هغه لوی (ذات عمّ نواله) چې آسمانونه او ځمکې، یعنې ګرد هغه علویّات او سفلیّات یې پیدا کړل (چې د ګردو عالمیانو عقول د هغو له احاطې څخه عاجز دي)؛ شپه او ورځ، تیاره او رڼا، هدایت او ضلالت، موت او حیات.

لنډه یې دا چې ګرد متقابل کیفیات او متضادّ احوال یې ظاهر وفرمایل، او ده ته د ده په ګردو افعالو کې د هیڅ یوه یار، مددګار، حصه دار، ښځې، اولاد او د نورو ضرورت نشته، د ده په معبودیت او الوهیت کې هیڅوک ورسره

شریکېدی نشي، او په ربوبیت کې هیڅوک د ده پر اراده غالبېدی نه شي، او په ده د هیڅا قوت او زور چلېدی نشي.

بیا د تعجب ځای دی، چې د دغو حقائقو له لیدلو او پوهېدلو څخه وروسته بیا هم دوی په څه ډول نورو شیانو ته د الوهیت مرتبه ورکوي؟ او د دوی په عبادت کې مشغولیږي؟ (یا د دغه خالق الکل او مالک الکل له وجوده بیخي منکران کیږي).

هُوَ الَّذِي خَلَقَكُم مِّن طِينٍ ثُمَّ قَضَىٰ أَجَلًا ۖ وَأَجَلٌ مُّسَمًّى عِندَهُ ۖ ثُمَّ أَنتُمْ تَمْتَرُونَ ۝

دغه (الله)هغه ذات دی چې پیدا کړي یې تاسې له خټو (چې آدم یې ترې ساز کړ) پس له هغه مقرر کړی یې دی یو وخت (لپاره د مرګ)، او یوه موده معلومه (د قیامت) ده په نزد د الله، بیا هم تاسې شک کوئ (په توحید او بعث کې).

تفسیر: پاس د «عالم کبیر» یعنې د جهان دپیدایښت ذکر وو، دلته د «عالم صغیر» یعنې د انسان د خلقت بیان فرمایي، چې وګورئ اول د بې ساه خاورې څخه یې د آدم علیه السلام کالبوت تیار کړ، او په څه ډول یې ژوندی کړ، او په څه انساني کمالاتو یې فائض کړ، او نن ورځ هم له دې خاورې څخې ګرد خواړه وځي، او له غـذا څخې نطفه او له نطفې څخې انسان جوړیږي.

غرض دا چې په دې ډول یې له عدم څخې تاسې په وجود راوړي یئ، بیا یې د هر سړي د مرګ لپاره یو وخت مقرر کړ، کله چې انسان بیا په خاورو کې خښ او بیا له هغې سره ګډیږي چې ترې پیدا شوی وو، نو په همدې باندې تاسې قیاس کولی شئ چې د «عالم کبیر» فنا ته هم یو وخت مقرر دی، چې هغه ته «قیامت کبری» وایي، «قیامت صغری» یعنې ځانګړي او انفرادي مرګونه څنګه چې مونږ ته تل راځي؛ نو د هغه علم هم خلقو ته نه وي، لیکن د «قیامت کبری» د صحیح او برابر وخت علم یواځې پاک الله ته دی، نو تعجب دی چې د «عالم صغیر» یعنې د انسانانو د بقا او فنا د سلسلې له لیدلو سره سره بیا هم چې انسان د «عالم الکبیر» په فناء کې څرنګه تردد کوي؟.

وَهُوَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَفِي الْأَرْضِ ۖ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ۝

او همدی دی الله (مستحق د عبادت) په آسمانونو کې او په ځمکه کې، عالم دی الله په پټ (حال) ستاسې، او (عالم دی الله) په ښکاره (حال) ستاسې، او عالم دی الله په هغو (اعمالو) چې کوئ (یې) تاسې.

تفسیر: یعنې په ګردو (ټولو) آسمانونو کې یواځې همغه بر حق معبود، مالک، پاچا، متصرف او مدبر دی، او دغه مبارک نوم (الله) هم یواځې د همغه متعالي الصفاتو د ذات لپاره مخصوص دی، بیا نو نورو ته د معبودیت استحقاق له کومه راغی؟.

څنګه چې په ځمکه او آسمانونو کې د همغه حکومت دی، او همغه بلا واسطه په ټولو ظاهرو او باطنو شیانو په پټو او په ښکاره، وړوکو او لویو عملونو مطلع دی، نو عابد ته هیڅ ضرورت نشته، چې په خپلو عباداتو او استعاناتو او په نورو کې غیر الله شریک وګرځوئ، مشرکانو به چې داسې ویل: ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ﴾ «مونږ عبادت نه کوو بتانو ته، مګر کوو یې د دې لپاره چې نژدې کړي مونږ الله ته په نژدیوالي سره»، دغه د دوی او د دوی د نورو ملګرو ځواب شو.

او ړومبی په «أجل مسمّی» سره د قیامت په لوري اشاره وه، دلته یې د مجازاتو په سلسله تنبیه وفرمایله، چې په ځمکه او آسمان کې څمونږ حکومت دی، او ستاسې ګرد (ټول) پټ او ښکاره، نېک او بد عملونه څمونږ په علم کې شته، بیا نو هیڅ وجه نشته چې تاسې همداسې چټي (بېکاره) او مهمل پرېښودی شئ.

وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ۝٤ فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ۝٥

او نه راځي دې (کفارو) ته هیڅ کوم (تکویني یا تنزیلي آیت) له آیتونو د رب د دوی مګر وي دوی له هغه څخه مخ ګرځوونکي (تغافل کوونکي). نو په تحقیق نسبت د دروغو وکړ دوی حق ته کله چې راغی دوی ته، نو ژر به راشي (ظاهر به شي) دوی ته اخبار (حقیقت) د هغه شي چې وو دوی چې پرې خندل به یې.

**تفسیر:** له حق څخه غالباً «قرآن کریم» مراد دی، چې د هغو کسانو بد انجامی او دنیوي او اخروي سزاوې بیانوي، چې له دلائلو څنې تغافل او تجاهل کوي، او هر کله چې هغه اوري؛ ترې اعراض او انکار کوي، او تکذیب او استهزاء پرې کوي، او داسې ښکاروي چې په هغو خبرو چې تاسې خاندئ او تمسخر پرې کوئ ـ هغه به ډېر ژر یو ثابت حقیقت وګرځي، او تاسې ته به په مخه درشي، وروسته له دې نه د هغو اقوامو احوال وربیانوي، چې د آیات الله د تکذیب او استهزاء او بدو عملو په سبب هلاک شوي دي.

أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ۝٦

آیا نه دي کتلي (نه دي خبر شوي) دوی چې څومره (ډېر) هلاک کړي دي مونږ پخوا له دی نه له (نورو امتونو) قرنونو څنې، چې ښه قوت ورکړی وو مونږ دوی ته په ځمکه کې، دومره قوت چې نه مو دی درکړی تاسې ته، او راښکته کړی وو مونږ باران پر دوی پرله پسې ورېدونکی، او ګرځولې مو وې ویالې چې بهېدلې له لاندې د (ماڼیو او ونو د) دوی، نو هلاک کړل مونږ دوی په سبب د ګناهونو د دوی، او پیدا کړل مونږ وروسته له دوی نه (اهل) د قرن نور.

**تفسیر:** یعنې عاد او ثمود چې هغوی ته ستاسې په نسبت ډېر طاقت، زور، قوت او قدرت ورکړی شوی وو، او د عیش او خوشالۍ په دوره کې یې ډېر ښه ژوندون درلود (لرلو)، کله چې دوی بغاوت او تکذیب ته ملاوې وتړلې؛ نو مونږ دوی د هغو جرمونو په سزا داسې سخت ونیول، چې نوم او نښان یې هم نه دی پاتې، وروسته له دوی نه مو نور امتونه پیدا کړل، او له متکبرانو او مکذّبانو سره مو هم دغه سلسله جاري کړه.

«قرن» د یوې زمانې اهل ته ویلی شي، چې د هغه په تحدید او تعیین کې ډېر اقوال دي، څنې (۱۲) ځینې (۲۰) ځینې (۳۰) ځینې (۷۰) ځینې (۸۰) ځینې (۱۲۰) کلونو ته قرن وایي، خو په أصح الأقوال کې قرن د عمرونو له هغه متوسطه قدر او مشترک حد څخه عبارت دی، چې زیاتره د یوې زمانې اهل پکې ژوندون کوي، یا هغومره موده چې د یوه کال د ځېږېدلو څنې پکې یو تن هم ژوندی پاتې نشي، او ګرد (ټول) سره ومري، خو اوسني پوهان سلو کلونو ته بالقطع قرن وایي.

وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝٧

او که نازل کړی وی مونږ پر تا کتاب (لیکلی) پر کاغذ، پس مَس کړی وی دوی دا کتاب په لاسونو خپلو (او په سترګو یې هم لیدلی وی)؛ نو خامخا ویلي به وو هغو کسانو چې کافران شوي دي، چې نه دی دا مګر خو سحر (کوډې) دي ښکاره.

تفسیر: د مکي معظّمي ځینو مشرکانو ویلي وو: «که محمد صلی الله علیه وسلم یو تیار لیکلی شوی کتاب له آسمانه راوړي، چې څلور پرښتې هم ورسره وي، او څمونږ په مخ کې شاهدي اداء کړي، چې بېشکه هم دا کتاب د الله تعالی له لوري لیږلی شوی دی؛ نو مونږ به ایمان راوړو»، د هغو ځواب داسې ورکوي، هغه خلق چې په موجوده حالت کې دي، لوی قرآن ته سحر، جادو او کوډې او راوړونکي ته یې ساحر او کوډګر وایي، که په واقع سره مونږ په کاغذ لیکلی شوی داسې کتاب هم له آسمانه ورولیږو، چې دوی یې د خپلو لاسونو په مښلو سره هم معلوم کړي، او ښه وپوهیږي چې څه تخییل او نظر بندي په کې نشته؛ نو بیا هم دوی عناداً هم داسې وایي چې: دا خو صریح جادو دی، هغو بدبختو ته چې هدایت نه دی ور په برخه شوی؛ د هغو شک او شبهه له سره نه ورکیږي.

وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ۖ وَلَوْ أَنزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْأَمْرُ ثُمَّ لَا يُنظَرُونَ ﴿٨﴾

او ویلي (کفارو) ولې نه نازلیږي په دغه (محمد) پرښته (له آسمانه)؟ او که نازله کړي وی مونږ پرښته؛ نو خامخا فیصله شوې به وه خبره (د هلاک د دوی)، بیا به (دوی ته) مهلت نه وو ورکړی شوی.

تفسیر: یعني کفارو ویل چې: ښایي پرښته مونږ ته مخامخ ودریږي، او د ده پر صداقت شاهدي ورکړي، نو الله تعالی فرمایي: «که پرښتې په خپل اصلي صورت سره راشي، نو دا خلق د یوې شیبې لپاره هم د هغوی تحمّل نشي کولی»، که د دې خلقو داسې عظیم الشأن او خارق العاده غوښتنه هم پوره کړی شي، او بیا یې هم ونه مني، لکه چې د دوی د نورو معاندانه احوالو او اقوالو څخه ښکاره ده، نو له سنت الله سره برابر بیا قطعاً دوی ته هیڅ مهلت نه ورکول کیږي، او د داسې سخت عذاب غوښتونکو باندې خامخا همغسې سخت عذاب نازلیږي، چې په هغه سره به دوی بیخي فنا کیږي، نو په دې لحاظ د داسې غوښتنې نه پوره کول هم ښایي د الله تعالی عین رحمت وګڼل شي.

وَلَوْ جَعَلْنَاهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنَاهُ رَجُلًا وَلَلَبَسْنَا عَلَيْهِم مَّا يَلْبِسُونَ ﴿٩﴾

او که ګرځولی وی مونږ دا رسول پرښته (نه بشر) نو خامخا ګرځولې به وه مونږ دغه پرښته (په صورت د یوه) سړي، او (که ګرځولی وی مونږ پرښته په صورت د سړي نو) خامخا په شبهه کې به اچولي وو مونږ دوی په همغسې اشتباه کې چې اوس په کې پراته دي.

تفسیر: څرنګه چې په لومړني آیت کې د پرښتو د لیږلو څنې په اصلي صورت سره نفي وشوه، اوس نو د دویم احتمال ځواب ورکوي، او هغه دا دی چې باید پرښتې د انسانانو په شکل ولیږلی شي، ځکه چې په دې صورت کې د صوري مجانست په بناء خلق د دوی د نمونې او تعلیم څنې منتفع کېدی شي، لیکن په دې تقدیر سره هم د منکرانو د شبهاتو ازاله نشي کېدی، هغه شکونه او شبهې چې د رسول په بشریت کې یې کوي؛ همغه به په مَلَک کې هم (که د بشر په شکل د دوی له غوښتنې سره سم راتلی) واردېدلی.

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١٠﴾ ع

او خامخا په تحقیق مسخرې کړی شوې دي په رسولانو چې پخوا وو له تا نه؛ نو چاپېر او محیط شو په هغو کسانو پورې چې مسخرې یې کولې په دوی پورې هغه (عذاب) چې وو دوی چې په هغه پورې به یې مسخرې کولې.

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿١١﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته كه دوى نه وي قائله په هلاک د پخوانيو قرنو): وګرځئ تاسې په ځمکه کې بيا وګورئ چې څرنګه وو عاقبت (خاتمه) د دروغجن ګڼونکو (د رسولانو).

تفسير: يعني د ملکونو د سير او سياحت او ګرځېدلو او د تباه شويو أقوامو د آثارو له کتلو څخه وروسته که د عبرت په نظر سره ماضي واقعاتو ته وګورئ؛ نو د هغو اقوامو انجام به تاسې ته صاف دربښکاره او څرګند شي؛ چې د انبياوو تکذيب ته يې ملاوې تړلې وې، نو په همغو يې قياس کړئ ! کله چې د مکذبينو حال هغسې شو، نو د استهزاء کوونکو حال به څرنګه وي؟.

قُل لِّمَن مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ قُل لِّلَّهِ ۚ كَتَبَ عَلَىٰ نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۚ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ ۚ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې چا لره دي (خلقاً، ملكاً او عبيداً) هغه شيونه چې په آسمانونو کې او په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې)؟ ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې خاص الله لره دي (بل څوک نشته)، لازم کړې دى الله (تفضلاً) پر نفس خپل رحمت، خامخا ټول به کړي (الله) هرو مرو تاسې په ورځ د قيامت کې چې نشته هيڅ شک په (راتلو د) هغې کې، هغه کسان چې زيان يې رسولى دى ځانونو خپلو ته (د اصلي فطرت او سليم عقل په ضياع)؛ نو دوى ايمان نه راوړي.

تفسير: کله چې په ګردې (ټولې) ځمکې او آسمانونو کې د الله تعالى حکومت دى، لکه چې مشرکان هم داسې اقرار کوي؛ نو مکذبانو او مستهزآنو ته کله له فوري سزا څخه نجات او پناه ورکوله کيږي؟ دا يواځې د الله جل جلاله عمومي رحمت دى، چې د جرائمو د ليدلو سره سره فوراً مجرم ته سزا نه ورکوي، نو د قيامت په ورځ کې چې يقيناً او بلا شبهه راتلونکې ده، يواځې همغو بدبختانو ته به سزا ورکوي؛ چې په قصد سره يې خپل ځانونه د هلاکت په کنده کې اچولي دي.

وَلَهُ مَا سَكَنَ فِي اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿١٣﴾ قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ۗ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ ۖ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٤﴾

او خاص دغه (الله) لره دي هغه شيونه چې اوسيږي (آرام کوي) په شپه کې او په ورځ کې (يعني دا ټول د الله مملوک دي)، او همدغه (الله) دى ښه اوريدونکى (د ټولو اقوالو) ښه عالم (پر ټولو احوالو). ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې آيا بې له الله ونيسم زه (بل ولي) دوست مددګار؟ (هسې الله) چې پيدا کوونکى د آسمانونو او د ځمکې دى، (بلکه نه يې نيسم) حال دا چې دغه (الله) روزي ورکوي (ګردو مخلوقاتو ته) او ده ته روزي نشي ورکولى، ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشکه زه مأمور يم (حکم راته شوى دى) چې شم اول د هغو چې غاړه يې ايښې ده (الله ته له دغه محمدي امته)، او (ويلي شوي دي ماته) چې مه کيږه له سره له مشرکانو نه.

قُلْ إِنِّيٓ أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥﴾

ووايه (اې محمده ! دوی ته) بېشکه زه وېرېږم که نافرماني وکړم له رب خپله له عذابه د ورځې ډېرې لويې نه (چې قيامت دی).

تفسير: په پيغمبر صلی الله عليه وسلم يې اېښى او نورو ته يې اورولى دى، يعنې که په فرض محال سره د الله تعالى له ډېرو معصومو او خورا (ډېرو) غوره بندګانو څخه هم کوم ډول عصيان صادر شي؛ نو د الله تعالى د عذاب اندېښنه ورته شته، نو بيا نورو ته کله لايق او وړ (مناسب) ده؛ چې سره له شرکه او د انبياوو د تکذيبه او د نورو زرهاوو ډولونو جرائمو له ابتلاء سره د الله تعالى له عذابه بېفکره او مأمون شي.

مَّن يُصْرَفْ عَنْهُ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهُۥ ۚ وَذَٰلِكَ ٱلْفَوْزُ ٱلْمُبِينُ ﴿١٦﴾

هر هغه څوک چې چپ (بچ) کړی شي له عذابه په دې ورځ کې؛ نو په تحقيق رحم (مهرباني) کړې ده (الله) په ده او دا (مهرباني) بری دی ښکاره.

تفسير: د جنت او د الله جل جلاله رضا حاصلول خو د مدارجو اعلى او خورا (ډېر) لوړ مقام دی، که له چا څخه د آخرت عذاب لرې شي، نو دغه هم لوی بری او ښه کاميابي ده، کما قال عمر رضي الله تعالى عنه: «وددت أني نجوت منها كفافاً لا لي ولا عليّ».

وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٧﴾
وَهُوَ ٱلْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلْحَكِيمُ ٱلْخَبِيرُ ﴿١٨﴾

او که ورسوي تاته الله څه سختي (لکه مرض او فقر) نو نشته هيڅ لرې کوونکی د هغه مګر همدی دی، او که ورسوي تاته څه خير (لکه صحت او غنی) نو دی پر هر شي ښه قادر دی (نو تل خير او شر، نفع او ضرر هم د الله په اراده رسيږي) او هم دی غالب زورور دی له پاسه د بندګانو خپلو، او هم دی ښه حکمت والا ښه خبردار دی (له هر شي).

تفسير: هر چا ته چې الله تعالى په دنيا يا په آخرت کې کوم تکليف يا راحت ور رسوي، نه يې څوک په مقابلې سره ستنولی (واپس کولی) شي، او نه د ده له غلبې او اقتداره چېرې تښتېدلی شي، همدا الله تعالى له بنده څخه ښه خبردار دی، چې څه څه اعمال او حالات لري، او د دوی له اعمالو او حالاتو سره کوم اجراءات او بدل لازم او مناسب او له حکمت سره قرين دي؟.

(دغه لاندې آيت هله نازل شو، چې څمونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل شو، چې ته په خپل صداقت باندې کوم شاهد لرې؟ څکه چې کتابيان ستا له نبوته انکار کوي).

قُلْ أَىُّ شَىْءٍ أَكْبَرُ شَهَٰدَةً ۖ قُلِ ٱللَّهُ ۖ شَهِيدٌۢ بَيْنِى وَبَيْنَكُمْ ۚ وَأُوحِىَ إِلَىَّ هَٰذَا ٱلْقُرْءَانُ لِأُنذِرَكُم بِهِۦ
وَمَنۢ بَلَغَ ۚ أَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُونَ أَنَّ مَعَ ٱللَّهِ ءَالِهَةً أُخْرَىٰ ۚ قُل لَّآ أَشْهَدُ ۚ قُلْ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ
وَإِنَّنِى بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿١٩﴾

(ووايه اې محمده ! دوی ته) چې کوم يو شی لوی دی له جهته د شاهدی؟ ووايه (په ځواب کې دوی ته) چې الله (لوی دی د شهادت له جهته، بل ځواب نشته !) (او الله) ښه شاهد دی

څما او ستاسې په منځ کې، او وحيې کړې شوې ده ماته د دې قرآن لپاره د دې چې وويروم (خبردار کړم) تاسې په دې سره، او هغه څوک چې وورورسيږي (ده تـه دا قـرآن په هر زمان او مکـان کې)، آيا بېشکه تاسې خامخا شاهدي لولئ په دې چې شته د الله سره معبودان نور؟ ووايه (ای محمده ! دوی ته) زه خو شاهدي (په دې سره) نه ورکوم، ووايه خبره همدا ده چې الله دی معبود يو، او بېشکه زه بېزار يم له هغو شيونو چې شريکان کوئ يې تاسې (له الله سره).

تفسير: يعنې که پوهېږئ نو څما په صداقت د الله جل جلاله يقيني او ښکاره شهادت همدا موجود عظيم الشأن قرآن دی، چې پخپله په دې باندې دليل دی؛ چې الهي کلام دی، «د لمر دليل پخپله دغه لمر دی»، څما کار دا دی چې تاسې او هر هغه چاته چې دا د الله تعالى کلام وورورسيږي، هغه د الله تعالى له پيغامه خبردار کړم، بيا هم تاسې دا وايئ چې غير له الله جل جلاله نور معبودان هم شته؟ تاسې اختيار لرئ هر څه چې مو زړونه غواړي هغه ووايئ ! زه خو له سره داسې حرف په خپله ژبه نشم راوړی، بلکه صاف اعلان کوم چې د عبادت لايق او ور يواځې هغه يو پاک الله دی، باقي هر هغه څه چې تاسې يې ورسره شريکان ګڼئ؛ زه له هغو څخه بيخي خپله بېزاري او نفرت څرګندوم.

تنبيه: په ﴿وَمَنۢ بَلَغَ﴾ سره يې وښود چې د نبي کريم «عليه أفضل الصلاة والتسليم» رسالت د ګردو (ټولو) انسانانو، پيريانو، مشرق، مغرب، شمال، جنوب، ټولو مللو او اقوامو لپاره دی؛ (د نزول له وقته تر قيامته پورې، او د پاک قرآن ليدل داسې دي لکه د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدل).

ﭐلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ يَعۡرِفُونَهُۥ كَمَا يَعۡرِفُونَ أَبۡنَآءَهُمُۘ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ فَهُمۡ لَا يُؤۡمِنُونَ ۝٢٠

هغه کسان چې ورکړی دی مونږ دوی ته کتاب؛ پېژني دوی دا (رسول) لکه چې پېژني دوی ځامن خپل، هغه کسان چې زيان يې رسولی دی ځانونو خپلو ته، نو دوی ايمان نه راوړي.

تفسير: يعنې علاوه په دې چې څما په صداقت الله تعالى شاهد او قرآن کريم ناطق دی، او پرې غير قابل ترديد شهادت ورکوي، هغه اهل کتاب يعنې يهود او نصارى هـم (چې خلق هغوی تـه د آسماني کتابونو د عالمانو په حيث څما د خبرو او معاملو په باره کې رجوع کوي) پـه خپلو زړونـو کې داسې پـوره يقين لري، چې بلا شُبهه زه همغه (آخر الزمان نبي) يم، چې څما زيری پخوانيو انبياوو عليهم السلام پرله پسې کړی دی، دوی همغسې چې په ډېرو هلکانو کې خپل هلکان ژر پېژني، او په کې څه ربړ (زحمت) او تکليف نه کوي؛ همداسې دوی د نبي کريم په رسالت، او د پاک قرآن په صداقت کې هم هيڅ شک او شبهه نه لري، او ګرد حقائق دوی ته ښکاره دي.

هو ! حسد، کبر، ډېلرونو تقليد، د جاه او مال سره مينه او نور اغراض دوی ته اجازه نه ورکوي، چې په ايمان مشرف شي، او خپل ځانونه له دائمي نقصان او ابدي هلاکت څخه وژغوري (وساتي).

وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًا أَوۡ كَذَّبَ بِـَٔايَٰتِهِۦٓۚ إِنَّهُۥ لَا يُفۡلِحُ ٱلظَّٰلِمُونَ ۝٢١

او څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې وتړي پر الله دروغ يا نسبت د دروغو کوي آيتونو د ده ته؟ (بلکه نشته !) بېشکه شان دا دی چې خلاصی نه مومي ظالمان.

تفسير: يعنې چې نبي نه وي او پر الله جل جلاله افتراء، او د نبوت غلطه دعوى وکړي، يا د داسې صادق نبي تکذيب وکړي، چې پر صداقت يې واضحه دلائل موجود وي، او د الله تعالى پيغام خلقو ته اوروي، له دې دواړو څخه زيات بل هيڅوک ظالم کېدی نشي، او د الله جل جلاله سنت هم داسې جاري دي، چې په پای (آخر) کې بری او کاميابي ظالمانو ته نه په برخه کيږي.

نو فرض یې کړئ که معاذ الله زه مفتري يم، نو له سره به برې ونه مومم، او که تاسې مکذبان يئ لکه چې له دلائلو څخې ښکاريږي؛ نو تاسې به د خير مخ ونه وينئ ! نو له دې کبله (وجې) ښايي چې پر ګردو (ټولو) حالاتو کې ښه غور او دقت وکړئ ! او د آخرت او د انجام په فکر کې شئ، او د هغې ورځې له عاقبته وويرېږئ چې وروسته يې ذکر راځي.

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا أَيْنَ شُرَكَاؤُكُمُ الَّذِينَ كُنْتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٢٢﴾

او (ياده کړه) هغه ورځ چې راجمع به کړو دوی (يعني عابدان او معبودان) ټول، بيا به ووايو (زجراً) هغو کسانو ته چې شرک يې کړی دی، چې چېرته دي؟ (او څه شول؟) شريکان ستاسې هغه (شريکان) چې وئ تاسې چې ګڼل به مو (د الله شريکان).

ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ ﴿٢٣﴾

بيا به نه وي دليل او ځواب د دوی (په هغه وخت کې چې عذابيږي، او امتحانيږي دوی په سبب د کفر او شرک د دوی)؛ مګر دا چې وايي به دوی چې: قسم په الله چې رب ځمونږ دی چې نه وو مونږ مشرکان.

تفسير: يعنې د واقعاتو له انکار څخې پرته (علاوه) بله چاره نه لري، د هغو باطلو معبودانو حقيقت چې ګرد عمر د هغو په عقيده او محبت کې بيخي محو او مفتون شوي وو، هم دغومره پاتې کيږي چې؛ د هغوی د ګرد عمر له تعلق او عقيدې څخه منکريږي.

انْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوا عَلَىٰ أَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾

وګوره (ای محمده !) څرنګه دروغ يې وويل پر ځانونو خپلو (په نفي د شرک له ځانه) او ورک شو له دوی نه هغه چې وو دوی چې تړل به يې دروغ (پر الله په نيولو د شريکانو سره).

وَمِنْهُمْ مَنْ يَسْتَمِعُ إِلَيْكَ ۖ وَجَعَلْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ أَكِنَّةً أَنْ يَفْقَهُوهُ وَفِي آذَانِهِمْ وَقْرًا ۚ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ
آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا ۚ حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوكَ يُجَادِلُونَكَ يَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٢٥﴾
وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْأَوْنَ عَنْهُ ۖ وَإِنْ يُهْلِكُونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾

او ځينې له کفارو هغه څوک دي چې غوږ نيسي تاته (د قرآن د قرائت په وخت کې) او اچولې دي مونږ په زړونو د دوی پردې (له دې جهته) چې پوهه نشي دوی په دې (قرآن) او (اېښې مو دي) په غوږونو د دوی کې دروندوالی (کوڼوالی چې حق خبره وانه وري)، او که ووينې دوی ګرد (ټول) دلائل (د قدرت نو بيا هم) ايمان نه راوړي دوی پر دغه (هر قسم معجزو عناداً)، تر هغه پورې کله چې راشي دوی تاته چې جګړې کوي له تاسره؛ وايي هغه کسان چې کافران شوي دي، نه دی دا قرآن مګر باطلې قصې دي د پخوانيو خلقو. او دا کسان منع کوي (خلق) له رسوله (يا له قرآنه يا له ايمان نه) او (پخپله هم) لري کيږي له ده (چې ايمان پرې نه راوړي)، او نه هلاکوي دوی مګر ځانونه خپل او نه پوهيږي دوی (په دې چې ضرر يې هم دوی ته عائد دی).

**تفسير:** يعنې په دوی کې نه فهم پاتې دی، او نه انصاف، ايمان راوړل او له رباني هدايتونو ځنې انتفاع لا چېرې؟ ! د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په حضور کې د دوی د راتللو څخه غرض يوائې مجادله، جګړه، تعريض، ټوکې او تفريح کول دي، کله چې قرآني حقائقو او بياناتو ته به يې معاذ الله ﴿اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ ويل، بيا په دغه تکذيب، مجادله، او تمسخر يې اکتفا نه کوله، او کوښښ يې کاوه چې د نورو په اذهانو کې هم دغه رنځوري سرايت وکړي، لکه چې خلق يې له حق ځنې ستنول (واپس کول)، او دوی پخپله هم له حقائقو ځنې لرې تښتېدل، ځو د دوی له ليدلو ځنې نور کسان هم د حق له منلو ځنې متنفر او بېزاره شي، مګر له دغو ټولو ناپاکو کوښښونو ځنې «الله الحمد» نه حق دين ته څه نقصان رسېدی شي، او هغه هرو مرو (خامخا) غالبيږي، او نه رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ته څه نقصان رسيږي.

وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلَى النَّارِ فَقَالُوْا يٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِاٰيٰتِ رَبِّنَا وَنَكُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۷﴾

او که ووينې ته (ای محمده !) کله چې ودرولی شي دوی پر اور (د دوزخ، د پل صراط په سر، نو وبه وينې يو لوی امر)، نو وبه وايي دوی (د عذاب د انواعو له ليدلو وروسته): ای کاشکې مونږ بيا بوتلی شو (دنيا ته) او نه به کړو تکذيب په آيتونو د رب خپل، او شو به مونږ له مؤمنانو (باور کوونکو نه).

بَلْ بَدَا لَهُمْ مَّا كَانُوْا يُخْفُوْنَ مِنْ قَبْلُ ؕ

(داسې نه ده لکه چې دوی وايي) بلکه ظاهر شو دوی ته هغه چې وو دوی چې پټول به يې پخوا (له دې نه په دنيا کې چې کفر او معاصي دي).

**تفسير:** يعنې دوی اوس هم په صحيح عزم او ايماني شوق او رغبت دنيا ته د بېرته ورتګ هيله (اميد) نه کوي، بلکه کله چې يې د هغه عمل د مکافاتو او مجازاتو منظره وليدله، چې د ښکاره دلائلو سره سره يې ترې انکاره کاوه، او د دوی اوسنی دروغ چې: ﴿وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ﴾ وايي ښکاره شول، او د دوی د شرارت پټ او له سترګو پناه آثار چې د دغو نالايقانو په زړونو کې يې وده کړې وه، مختل شول، او د يوه دردناک عذاب په صورت ورته ممثّل او مخې ته يې ودرېدل، نو اوس دوی تش د ځان د نجات لپاره دنيا ته د بېرته ورتګ هيله (اميد) کوي.

وَلَوْ رُدُّوْا لَعَادُوْا لِمَا نُهُوْا عَنْهُ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۲۸﴾

او که بېرته بوتله شي دوی (دنيا ته) نو خامخا به بيا هم راوګرځي دوی همغه شي ته چې منع کړی شوي وو دوی له هغه شي څخه (چې کفر او معاصي دي) او بېشکه دوی هرومرو دروغجنان دي (په دغه دعوی د ايمان کې).

**تفسير:** يعنې اوس هم دروغ وايي؛ چې «مونږ دنيا ته بېرته لاړ شو، ايماندار به وګرځو، او له سره به د آيات الله تکذيب ونه کړو»، خو دا اشقياء که بېرته دنيا ته هم ستانه کړل شي؛ نو بيا به هم له شرارت او بدۍ څخه لاس نه اخلي، او هغه رذيله قوتونه چې د دوی په وجود کې شته، بيا به يې په کار اچوي، او له هغه مصيبت څخه چې ويربدلي وو، او د بېرتـه تللو تمنّا يې کړې وه، هغه به لکه يو خوب او خيال هېروي، لکه چې ډېر ځلې کله چې سړی په دنيوي مصائبو او مهالکو کې آخته کيږي، نو انابت او توبه غوره کوي، ولې همدا چې څو ورځې تېرې شي؛ بيا يې هيڅ شی په ياد نه پاتې کيږي، چې په هغه وخت کې مې څه عهد او پيمان کړی وو ﴿كَاَنْ لَّمْ يَدْعُنَآ اِلٰى ضُرٍّ مَّسَّهٗ﴾.

وَقَالُوْٓا اِنْ هِيَ اِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوْثِيْنَ ﴿۲۹﴾

او وايي دوی نه دی ژوندون مګر همدا ژوندون ځمونږ دنيوي (چې لږ او نژدې دی) او نه يو مونږ بيا راپاڅولي شوي (راپاڅيدونکي له قبرونو څخه حساب او کتاب ته).

تفسير: يعنې ښې مزې کوئ! او دنيوي عيش او عشرت مو د آخرت په فکر او انديښنه کې مه خرابوئ، همدا حال نن ورځ د اروپايي ماده پرستانو هم دی.

وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ وُقِفُوْا عَلٰى رَبِّهِمْ ؕ قَالَ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۳۰﴾

او که ووينې ته (ای محمده!) هغه وخت چې ودرولی شي دوی رب خپل ته (په موقف د عرض کې د حساب لپاره نو وبه وينې يو لوی امر) فرمايي به (الله) آيا نه دی دا (دويم ژوندون) په حقه سره؟ وبه وايي دوی: هو بلکه دی، قسم دی وي په رب زمونږ! پس وڅکئ تاسې دا عذاب په سبب د دې چې وئ تاسې چې کافران شوي وئ (په دنيا کې).

تفسير: يعنې کله چې حقيقت د دوی تر ستر ګو لاندې راشي، او د «بعث بعد الموت» او نورو له اقراره څه چاره ورپاتې نشي، نو دلته دوی ته ويل کيږي، چې اوس د حقيقت د انکار او د «کفر بالمعاد» خوند وڅکئ!.

قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيْهَا ۙ وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ﴿۳۱﴾

په تحقيق زيانکاران (او تباه) شوي دي هغه کسان چې دروغ ګڼي ملاقات له الله سره (په عقبا کې)، تر هغه پورې کله چې راشي دوی ته قيامت ناڅاپه؛ (نو) وايي به دوی: ای افسوسه (او پښېمانی) ځمونږ په هغه شي چې تقصير کړی وو مونږ په دنيا کې (چې هغه ايمان وو)، حال دا چې دوی به واخلي (پيټي د) ګناهونو خپلو پر شاوو خپلو، واورئ! خبردار شئ! چې بد دی هغه شی چې په شا يې ګرځوي دوی.

وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۳۲﴾

او نه دی حيات دنيوي (ژوندون لږ خسيس) مګر لوبې (د هلکانو) او ساعت تيري (د ليونيانو) ده، او خامخا دار آخرتنی خير (بهتر) دی لپاره د هغو کسانو چې پرهېزګاري کوي، نو آيا عقل نه چلوئ تاسې (چې دنيا ښه ده که عقبی؟ چې ايمان راوړئ!).

تفسير: کفارو خو داسې ويل چې د دنيوي ژوندون څخه ما سوا بل هيڅ ژوندون نشته، ليکن واقعه دا ده؛ چې دغه فاني او مکدّر ژوندون د اخروي ابدي حيات په مقابل کې بيخي هيڅ او بې حقيقته دی، د دې دنيا په ژوندون کې يواځې همغې شپې او برخې ته ژوندون ويلی شو؛ چې د آخرت لپاره په کې څه تياری او کار وکړ شي، باقي نور تمام وختونه چې د آخرت له فکره او تياری څخه تش وي؛ يوه عاقبت انديش ته له لهو او لعب څخه زيات اهميت نه لري، پرهېزګاران او پوهان پوهيږي چې د دوی اصلي کور د آخرت کور دی، او د هغوی حقيقي ژوندون د آخرت ژوندون دی. (اللهم ارزقناه).

قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَٰكِنَّ الظَّٰلِمِينَ بِآيَٰتِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٣٣﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّن قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَىٰ مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتَّىٰ أَتَىٰهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِ اللَّهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِن نَّبَإِى الْمُرْسَلِينَ ﴿٣٤﴾

په تحقیق مونږ پوهیږو ببشکه شان دا دی چې خامخا خپه کوي تا (ای محمده !) هغه شی چې وايي دوی (ستا په تکذیب کې)، نو ببشکه دوی نه کوي تکذیب ستا (په واقع کې)، ولیکن دا ظالمین په آیتونو د الله انکار (او مسخرې) کوي. (نو ته مه خپه کېږه ! ځکه چې) او خامخا په تحقیق دروغجن بللي شوي دي ډېر رسولان پخوا له تا نه، نو صبر به يې کاوه پر دروغجن ګڼلو او ضرر رسېدلو (د کفارو له جانبه) تر هغه پورې چې راغله دوی ته مرسته (مدد) ځمونږ، او نشته هيڅ بدلوونکی د احکامو اړوونکی د کلماتو د الله، او خامخا په تحقیق راغلې ده تاته (څه خبره) له حالاتو د (تېرو) رسولانو (چې پرې متسلّي شې).

تفسير: په دغو آيتونو کې اول رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تسلّي ده او اشقياوو ته ډار (وېره) او انذار ورکړی شوی دی، يعنې تاسې د دوی له دې اعراض او تکذيب څخه دومره مه خپه او مه پرېشانېږئ ! دا خلق چې ستا تکذيب کوي؛ في الحقيقت ستاسې تکذيب نه دی، ځکه چې تاسې لا له پخوا څخه بالاتفاق صادق او امين پېژندلي شوي يئ، بلکه دوی د الله تعالى د هغو آيتونو او نبېو تکذيب کوي، چې د رسول کريم صلى الله عليه وسلم د تصديق او تبليغ لپاره لېږلي شوي دي، او په قصد سره او د ظلم او عناد له لارې ترې انکار کوي، نو تاسې هم د دې ظالمانو معامله الله تعالى ته وسپارئ ! او مطمئن او ډاډه اوسئ، چې الله تعالى د دوی د ظلم نتيجه او ستاسې د صبر ثمره خامخا در کوي.

له پخوانيو انبياوو سره هم (چې د هغوی څه حالات تاسې ته آورول شوي دي) د دوی قومونو د تکذيب او ايذاء رسولو معامله کړې وه، چې پر هغو د الله تعالى هغو معصومو او نهايت أولوا العزمو رسولانو صبر کاوه، تر دې چې د الله تعالى له وعدې سره سم دوی ته مرسته (مدد) ورسېده، او د ډېرو لويو او زبردستو منکرينو او متکبرينو په مقابل کې دوی مظفر او منصور وګرځول شول، له تاسې سره هم د نصرت او ظفر هغه وعدې چې شوي دي، ګردې (ټولې) يو په يو پوره کېدونکي دي.

وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَآءِ فَتَأْتِيَهُم بِآيَةٍ ۚ وَلَوْ شَآءَ اللَّهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ ۚ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَٰهِلِينَ ﴿٣٥﴾

او که وي چې سخت وي پر تا باندې مخ ګرځول د دوی (له حق دين څخه)؛ پس که توان لرې ته چې ولټوې کوم سوری (سرنګ) په ځمکې کې (چې پکې کوز شې ځمکې ته) يا (ولټوې) کومه زينه په (طرف د) آسمان (چې پرې وخېژې آسمان ته) نو راوړې ته دوی ته کومه معجزه (چې دوی يې غوارې پس رايې وړه، خو فائده نه کوي، نو د دوی په ايمان حرص مه کوه، او تل خپل تبليغ کوه)، او که اراده کړې وی الله (د هدايت د دوی) نو هرو مرو (خامخا) به يې راټول کړي وو دوی ګرد (ټول) په سمه صافه لاره، پس له سره مه کېږه له ناپوهانو څخه (چې د ازلي کفارو په ايمان حرص کوې، او د دوی په جهالت پخسېږې ـ حسد کوې).

تفسير: د ﴿فَإِنِ اسْتَطَعْتَ﴾ ځواب په آيت کې محذوف او په ترجمه کې په «پس رايې وړه» سره مذکور دی، د کفارو دا مطالبه وه، کله چې دی نبي دی؛ نو ښايي چې له ده سره تل داسې يوه علامه او نښه وي، چې د هغې په ليدلو سره هر

سرې پرې يقين وکړي، او په ايمان راوړلو مجبور شي، څرنګه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ګردې (ټولې) دنيا پر هدايت حريص وو، ښايي د دوی په زړه کې داسې کومه خبره تېره شوې وي، چې د کفّارو دا مطالبه پوره کړه شي، نو ځکه حق تعالى دا تربيت وفرمايه، چې په تکوينياتو کې د الله تعالى د مشيئت تابع اوسه ! تکويني مصالح د دې خبرې مقتضي نه دي؛ چې ګرده (ټوله) دنيا په ايمان راوړلو مجبوره کړی شي، که نه «الله تعالى» په دې باندې هم ښه قادر وو، چې بې له رسولانو او علائمو له ابتداء څخه ګرد (ټول) په سمه صافه لاره بوځي، او پوره هدايت يې ور په برخه کړي.

کله چې د الله تعالى حکمت د داسې مجبوروونکو معجزاتو او فرمايشي علائمو د ښوولو لپاره تيار او مقتضي نه دی؛ نو د الله تعالى د سنت او مشيئت پرخلاف به بل څوک داسې طاقت او قوت له کومه ولري، چې په ځمکې سرنګ وکيني، يا آسمان ته زينه ودروي (يا پکې پرې وځړوي)، او داسې فرمايشي او مجبور کوونکې معجزې ښکاره او وروښيي، د الله تعالى د تدبير او حکمت له قوانينو څخې پرته د کوم بل شي د وقوع توقع لرل د ناپوهانو کار دی.

إِنَّمَا يَسْتَجِيبُ الَّذِينَ يَسْمَعُونَ ۘ وَالْمَوْتَىٰ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ ثُمَّ إِلَيْهِ يُرْجَعُونَ ﴿٣٦﴾

بېشکه قبلوي بلنه ستا (ايمان ته) هغه کسان چې اوري (پند ستا، او کفّار يې نه آوري لکه مړي) او مړي به ژوندي کړي الله، بيا خاص هم ده ته به وروستی شي دوی (د حساب او جزاء لپاره).

تفسير: يعنې تاسې له ګردو (ټولو) څخې داسې توقع مه لرئ، چې هغوی به ستاسې خبرې ومني، د هر چا د زړه غوږونه چې کاڼه شوي وي هغه نه اوري، نو بيا به يې هغه څرنګه ومني؟ ! هو ! دغه کافران چې د قلبي او روحاني حيثيته د مړو په شان دي، په قيامت کې به د حقائقو په ليدلو يقين کوي، او هغه ګرد (ټول) شيان به ومني چې له هغو څخې يې انکار کولو.

وَقَالُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۚ

او وايي کفار ولې نه نازلولی شي په دغه (محمد) باندې کومه معجزه (دليل د قدرت چې مونږ يې غواړو) له (جانبه د) رب د ده.

تفسير: يعني له دغو دلائلو څخې يو دليل ولې راونه لېږل شو چې دوی غوښتې وو کما في قوله تعالى: ﴿وَقَالُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْأَرْضِ يَنبُوعًا ﴿٩٠﴾ أَوْ تَكُونَ لَكَ جَنَّةٌ مِّن نَّخِيلٍ وَعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ الْأَنْهَارَ خِلَالَهَا تَفْجِيرًا ﴿٩١﴾ أَوْ تُسْقِطَ السَّمَاءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ قَبِيلًا ﴿٩٢﴾ أَوْ يَكُونَ لَكَ بَيْتٌ مِّن زُخْرُفٍ أَوْ تَرْقَىٰ فِي السَّمَاءِ وَلَن نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتَّىٰ تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتَابًا نَّقْرَؤُهُ ۗ قُلْ سُبْحَانَ رَبِّي هَلْ كُنتُ إِلَّا بَشَرًا رَّسُولًا ﴿٩٣﴾﴾ (۱۵ جزء د بني اسرائيل (الاسراء) د سورت (۱۰) رکوع ۹۰، ۹۱، ۹۲، ۹۳، آيت) او که نه هسې نورې علمي او عملي معجزې او علامې د باران په شان ډېرې پر تاسې وربدلې دي، او اُوري به.

قُلْ إِنَّ اللَّهَ قَادِرٌ عَلَىٰ أَن يُنَزِّلَ آيَةً وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٧﴾

ووايه (اې محمده ! دوی ته) بېشکه الله قادر دی په دې خبره چې نازل کړي (راوليږي) (مطلوبه) معجزه، ليکن اکثره کسان له دوی څخې نه پوهيږي (چې هغه معجزه سبب د عذاب ده).

تفسير: يعنې الله تعالى د فرمايشي معجزاتو له ښوونو څخه عاجز نه دی، ليکن د حکمت او رحمت پر هغو قوانينو چې د تکوينياتو نظام قائم او مبني دی، له تاسې څخې ډېر کسان د هغو له پوهېدلو څخه قاصر دي، د دغو قوانينو اقتضاء هم دا ده چې ګردې فرمايشي معجزې ورته ونه ښودلې شي.

وَمَا مِنۡ دَآبَّةٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا طَٰٓئِرٖ يَطِيرُ بِجَنَاحَيۡهِ إِلَّآ أُمَمٌ أَمۡثَالُكُمۚ مَّا فَرَّطۡنَا فِي ٱلۡكِتَٰبِ مِن شَيۡءٖۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمۡ يُحۡشَرُونَ ﴿٣٨﴾

او نشته هيڅ حيوان (خوځيدونکی تلونکی) په ځمکه کې او نه هيڅ مارغه چې الوځي په دواړو وزرونو خپلو (په هوا کې) مګر (ټول سره) امتونه (مخلوقات) دي په شان ستاسې، نه دی پرېښی مونږ په کتاب (لوح محفوظ) کې هيڅ شی (بلکه ګرد ليکلي دي) بيا به (دا ګرد) رب خپل ته ورټول کړی شي (د حساب او جزاء لپاره).

**تفسير:** په دې آيت کې پر ځينو هغو حکمتونو تنبيه کړی شوې ده، چې د فرمايشي معجزاتو په نه ورښوولو کې مرعي دي، يعنې ګرد هغه حيوانات چې پر ځمکه خوځيږي، يا په هوا کې الوځي، دوی هم د انسانانو په شان يو امت دی، له دوی ځنې هره نوعه الله تعالی په يوه خاصه وضع او فطرت پيدا کړې ده، چې دوی د خپلو افعالو او خواصو په معيّنه دائره کې کار کوي، او هيڅ يو ساکښ (ذي روح) د خپلو هغو افعالو او حرکاتو د محدودې حلقې له دائرې څخه يو پل هم د باندې نه ږدي، چې د الله تعالی له لوري د ده فطرت او استعداد په اعتبار مشخص او ټاکلی (مقرر) شوی دی، لکه چې د پيدايښت له ابتداء څخه تر نن پورې هيڅ يو حيوان د خپلې نوعې د عمل په محدوده دائره کې هيڅ قسم ترقي نه ده کړې، همداسې د هر شي استعداد او فطرت ته خيال وکړئ، د الله تعالی په قديم علم او لوح محفوظ کې د ګردو (ټولو) انواعو او اجناسو د تدبير او تربيت اصول او فروع منضبط شوي دي.

وَٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا صُمّٞ وَبُكۡمٞ فِي ٱلظُّلُمَٰتِۗ مَن يَشَإِ ٱللَّهُ يُضۡلِلۡهُ وَمَن يَشَأۡ يَجۡعَلۡهُ عَلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿٣٩﴾

او هغه کسان چې دروغ ګڼي آيتونه ځمونږ کاڼه دي او ګونګيان دي (د حق له اورېدلو او ويلو نه) په تيارو کې دي (د کفر او جهل)، او هر چا ته چې اراده وفرمايي الله (د ګمراهی يې) نو ګمراه کوي يې (او د هدايت توفيق ترې اخلي)، او هر چاته چې اراده وفرمايي (الله د هدايت د ده) نو ګرځوي هغه په سمه صافه لاره (د حق).

**تفسير:** (کاڼه او ړانده دي چې) نه د ويونکي ځنې آوري، او نه پخپله له نورو ځنې پوښتنه کوي، او نه په تيارو کې څه شی ليدلی شي، کله چې د دوی ګردې (ټولې) قواوې د بې اعتداليو له امله (وجې) بېکاره کړی شوي دي، نو د حق د تصديق او د هغه د قبلولو لپاره څه وسيله لري؟ ! الله تعالی د هغو کسانو د ګمراه کولو اراده فرمايي؛ چې دوی پخپله د هدايت وسايل په خپل ځان باندې مسدود کړي وي: ﴿وَلَوۡ شِئۡنَا لَرَفَعۡنَٰهُ بِهَا وَلَٰكِنَّهُۥٓ أَخۡلَدَ إِلَى ٱلۡأَرۡضِ وَٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ﴾ (۹ جزء (۲۲) رکوع د الأعراف (۱۷۶) آيت).

قُلۡ أَرَءَيۡتَكُمۡ إِنۡ أَتَىٰكُمۡ عَذَابُ ٱللَّهِ أَوۡ أَتَتۡكُمُ ٱلسَّاعَةُ أَغَيۡرَ ٱللَّهِ تَدۡعُونَ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ ﴿٤٠﴾ بَلۡ إِيَّاهُ تَدۡعُونَ فَيَكۡشِفُ مَا تَدۡعُونَ إِلَيۡهِ إِن شَآءَ وَتَنسَوۡنَ مَا تُشۡرِكُونَ ﴿٤١﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) خبر راکړئ ما ته که راشي تاسې ته عذاب د الله، يا راشي پر تاسې قيامت آيا بې له الله بل څوک به بولئ تاسې (بلکه نه يې بولئ) که يئ تاسې صادقان (رښتيني پخپله وينا کې). بلکه خاص همدغه الله بولئ تاسې، بيا لرې کوي الله له تاسې هغه (مصيبت) چې بولئ تاسې (الله) د هغه لپاره که اراده وفرمايي، او هېروئ تاسې (په وخت د سختی کې) هغه (باطل معبودان) چې شريکوئ يې تاسې (له الله سره).

تفسیر: کله چې ړانده، کاڼه او ګونګیان شئ، او د الله تعالی آیتونه دروغ وګڼئ، او د ګمراهی په ژورې (ښکته) کندې کې ولوېږئ، که په دغه سبب په دنیا یا په قیامت کې په سخت عذاب اخته شئ؛ نو ربښتیا ووایئ چې بې له الله جل جلاله څنې به تاسې بل کوم یوه ته نارې وکړئ؟.

د دنیا د ډېرو وړو کیو مصائبو سره هم هر کله چې مخامخ شئ نو مجبورا همغه یو الله جل جلاله ته نارې کوئ، او نور ګرد (ټول) شریکان ستاسې له یاده وځي: ﴿فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾ له هر هغه چې الله تعالی اراده وفرمایي نو هغه مصیبت ترې لرې کوي، نو له دې څنې اندازه وکړئ، چې د عذاب له نزوله یا د قیامت له هوله به تاسې پرته د الله تعالی څخه بل څوک وژغوري (وساتي)؟ ! نو بیا دا څومره حماقت او ړوندوالی دی؛ چې د هغه پاک الله عظمت او جلال هېروئ، او د ده د نازل کړی شویو آیتونو تکذیب او د فرمایشي آیتونو غوښتنه کوئ؟.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُم بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ﴿٤٢﴾ فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا وَلَٰكِن قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّىٰ إِذَا فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُم بَغْتَةً فَإِذَا هُم مُّبْلِسُونَ ﴿٤٤﴾

او خامخا په تحقیق استولي وو مونږ (رسولان) ډېرو امتونو ته پخوا له تا نه (ای محمده ! پس دوی تکذیب وکړ د هغوی) نو ونیول مونږ دوی په سختیو او تکلیفونو سره، لپاره د دې چې دوی زاري عاجزي وکړي (خپل رب ته او مؤمنان شي). کله چې راغی دوی ته عذاب څمونږ نو ولې عاجزي ونه کړه دوی (چې ترې لرې شوی وی عذاب)، او لیکن سخت شوي وو زړونه د دوی(نو څکه یې ترې عبرت وانخیست) او ښایسته کړي وه دوی ته شیطان هغه کارونه چې وو دوی چې کول به یې. پس کله چې هېر کړ دوی هغه شی چې پند ورکړی شوی وو دوی ته په هغه سره، نو وپرانیست مونږ پر دوی باندې وَرونه (لارې) د هر قسم نعمت، تر هغه پورې کله چې خوشال شو دوی پر هغو شیانو چې ورکړی شوی وو دوی ته (له انواعو د نعمتونو) نو ونیول مونږ دوی ناڅاپه، پس ناڅاپه په دې وخت (د لیدلو د عذاب) کې دوی ناامیده شي.

تفسیر: الله تعالی ګنهګار ته لږ څه تنبیه ورکوي، که دی ورته په زارۍ او عاجزۍ شو، او توبه یې اویسته ـ نو خلاصیږي، او که په هغې سپکې نیونې ویښ نه شو، نو بیا یې په هېره او مغالطه او تفریح کې غورځوي، او د عیش او عشرت او د وسعت دروازې ورپرانیځي، کله چې د نعمتو د شکر ګذارې او د انعام او احسان څنې د متأثر کېدلو په ځای ښه په ګناه کې ډوب شو؛ نو ناڅاپه بېخبره نیول کیږي، نو دلته دغه لاربښودنه کیږي چې که چا ته پر ګناه تنبیه ورسیږي، نو ژر دې توبه وکړي، او دې ته دې نه ګوري چې که زیاته تنبیه وشوه نو زه به یقین وکړم.

فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِينَ ظَلَمُوا ۚ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٤٥﴾

نو پرې کړی شو بېخ د قوم هغه (قوم) چې ظلم یې کړی وو، او ګردې (ټولې) ثناوې او صفتونه خاص الله لره دي، چې پالونکی د ټولو عالمیانو دی (د ظالمانو په هلاکولو سره).

تفسیر: د ظالمانو استیصال هم د ده د عامه ربوبیت اثر، او د عالم د مجموعې لپاره لوی رحمت دی، نو څکه دلته یې د حمد او شکر اظهار وفرمایه.

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَخَذَ اللَّهُ سَمْعَكُمْ وَأَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلَىٰ قُلُوبِكُم مَّنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُم بِهِ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُونَ ﴿٤٦﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) خبر راکړئ ماته که واخلي الله (قوت د) اورېدلو ستاسې (چې کاڼه شئ) او (قوت د) ليدلو ستاسې (چې ړانده شئ) او مهر ولګوي الله پر زړونو ستاسې (چې نه اورېدلی او نه ليدلی او نه په هيڅ شي پوهېدلی شئ) (نو بل) کوم معبود دی بې له الله نه چې بېرته راوړي (درکړي) تاسې ته هغه (اخستل شوي غوږونه، سترګې، زړونه او عقلونه)، وګوره (ای محمده !) چې څرنګه مونږ راز راز (قسم قسم) بيانوو دلائل (د وحدانيت) بيا (هم) دوی (ترې) څنګ (ډډه) کوي.

تفسير: «يعني په توبه کې ځنډ (تأخير) مه کوئ، ښايي چې دا غوږونه سترګې او زړونه په هغه وخت کې بيا ونه مومئ»، او د هغه له امله د توبې او استغفار توفيق درپيدا نشي.

قُلْ أَرَءَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ بَغْتَةً أَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الظَّالِمُونَ ﴿٤٧﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) خبر راکړئ ما ته که راشي تاسې ته عذاب د الله ناڅاپه (د شپې) يا ښکاره (د ورځې يعنې په هر شان چې راشي) آيا هلاک به کړی شي (په دغه عذاب سره بل څوک؟) مګر قوم ظالمان (يعنې همدغه مشرکان پرې هلاکيږي).

تفسير: ناڅاپه يعنې داسې عذاب چې د هغه هيڅ علامې له پخوا څخه درښکاره نه وي، نو له دې سببه د ﴿جَهْرَةً﴾ څخه به مراد هغه عذاب وي، چې د هغه له راتلو څخه د مخه څه علامې يې څرګندې شي، يا به له ﴿بَغْتَةً﴾ څخه شپه او له ﴿جَهْرَةً﴾ څخه ورځ مراد وي (يعنې په هر شان او هر تقدير سره چې وي).

ځينو مفسرينو د ﴿هَلْ يُهْلَكُ...﴾ الآيه ـ ترجمه داسې کړې ده: «آيا هلاک به کړی شي پرې څوک هم، يعنې هلاک به نه کړي هغه شی مګر قوم چې ظالمان دي»، يعنې په توبه ايستلو کې ځنډ (تأخير) کول نه دي پکار، ښايي چې په دغه تعطيل کې د الله تعالی عذاب ورورسيږي، چې د هغه تکليف يواځې همغو ظالمانو ته ور په غاړه کيږي، که له ظلم او عدوانه يې لا تر مخه توبه ايستلې وي، نو له دې عذاب څخه نجات مومي.

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِينَ إِلَّا مُبَشِّرِينَ وَمُنذِرِينَ فَمَنْ آمَنَ وَأَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٤٨﴾ وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٤٩﴾

او نه ليږو مونږ رسولان مګر زيري کوونکي (مؤمنانو ته په نعيم سره) او وېرووونکي (کفارو ته په جحيم سره)، پس هر څا چې ايمان راوړ او اصلاح يې کړ (عمل په طاعت سره)؛ نو نشته (هيڅ قسم) وېره په دوی باندې، او نه به دوی (هيڅکله) خپه کيږي (د ثواب په نقصان سره). او هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي دوی آيتونو څمونږ ته، وبه رسيږي دوی ته عذاب په سبب د هغه چې وو چې فسق به يې کاوه (د الله جل جلاله له طاعت څخه په وتلو).

تفسير: يعنې تاسې چې د الله تعالی د عذاب څخه بې وېرې او بې فکره شوي يئ، او په چټي (بېکاره) فرمايشونو او بېځايه پوښتنو سره رسول الله صلی الله عليه وسلم خپه کوئ ! او د دوی د تصديق لپاره له خپله ځانه جوړ کړي معيارونه مو تراشلي دي، ښه وپوهيږئ ! چې رسول الله صلی الله عليه وسلم د الله جل جلاله له طرفه د دې لپاره لېږل شوی دی؛

چې فرمان منونکو ته زېرى ورکړي، او نا فرمانان د دوى له انجامه خبردار او هوښيار كړي، بيا نو د هر چا عمل د هغه د لارې مل دى، هر چا چې د انبياوو عليهم السلام په خبرو يقين او باور وكړ، او اعتقاداً او عملا يې خپل حالت سم او سنبال كړ، حقيقي او دائمي امن، هوسايي (آرام) او اطمينان يې ور په برخه شو، او هغه كسان چې د الله تعالى آيتونه يې دروغ وبلل، او د الله تعالى له هدايته يې مخ واړاوه، د نافرمانى او بغاوت له سببه په سخته تباهى او لوى عذاب اخته شول «العياذ بالله».

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِیْ خَزَآىِٕنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَیْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّیْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا یُوْحٰۤی اِلَیَّ ؕ قُلْ هَلْ یَسْتَوِی الْاَعْمٰی وَالْبَصِیْرُ ؕ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۵۰﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې نه وايم زه تاسې ته؛ چې ما سره خزانې د الله دي (چې در كړم تاسې ته هر څه چې غواړئ) او نه (وايم چې زه) پوهېږم په غيب باندې (چې خبروم به تاسې له هر شي نه بې له وحيې) او نه وايم تاسې ته چې په تحقيق زه پرښته يم (چې وكړم په ملكي قوت سره هغه امور چې ملائک يې كوي) نه كوم پيروي (د هيڅ شي) مګر د هغه شي چې وحيې كړى شوې ده ماته (د هغه)، ووايه (اى محمده ! دوى ته) آيا برابر كېدى شي ړوند او ليدونكى؟ (نه ! نه سره برابريږي !) آيا نو فكر (غور) نه كوئ تاسې (چې حق له باطله بېل كړئ ! او ايمان راوړئ؟ !).

تفسير: په دې آيت كې د رسالت د منصب پر حقيقت رڼا اچولې شوې ده، يعنې هر څوک چې د نبوت مدعي دى، د ده دعوى داسې نه وي چې د الله تعالى د مقدراتو ګردې (ټولې) خزانې د ده په قبضه كې دي، چې هر كله له ده څخه د كوم امر خواهش وكړ شي، هغه به يې هرومرو همغسې وكړي، او نورو ته به يې وروښيي !، يا پر ګردو غيبي او ښكاره معلوماتو كه د رسالت په فرائضو پورې تعلق ولري يا نه دى مطلع كړى شوى دى چې هر شى ورڅخه وپوښتي؛ همغه سمدلاسه هغوى ته وروښيي، يا دى د بشر له نوعې څخه برسېره كوم بل نوع مخلوق دى؛ چې د بشري لوازمو او خواصو څنې د خپل برائت او نزاهت ثبوت دروړاندې كړي.

كله چې دى (پيغمبر) له دې ګردو خبرو څنې د يوې خبرې مدعي هم نه دى، نو له ده څنې د فرمايشي معجزاتو غوښتل، يا د تعنّت او عناد له لارې دا راز پوښتنې كول چې «قيامت به كله راځي؟»، يا د دوى داسې ويل چې: «دا څنګه رسول دى چې ډوډۍ خوري؟ او بازارو ته د پېرودلو او پلورلو (خريد وفروخت) لپاره ځي؟» دغه امور د تكذيب او تصديق لپاره معيار ګرځول صحيح نه دي.

﴿قُلْ هَلْ یَسْتَوِی الْاَعْمٰی وَالْبَصِیْرُ﴾ «ووايه اى محمده ! دوى ته، آيا برابر كېدى شي ړوند او ليدونكى؟ نه، نه برابريږي، ايا نو فكر، غور نه كوئ تاسې ! چې حق له باطله بېل كړئ؟ او ايمان راوړئ؟»، يعنې اګر كه رسول الله صلى الله عليه وسلم بې د بشر له نوعې څنې له بلې كومې نوعې څخه نه دى، ليكن د ده او نورو انسانانو په منځ كې د ځمكې او آسمان فرق دى، انساني قوتونه دوه قسمونه دي، علمي ـ عملي، د علمي قوتونو په اعتبار د نبي او غير نبي په منځ كې د ړانده او ليدونكي په شان فرق شته، رسول صلى الله عليه وسلم په خپل قول او فعل او هر يوه حركت او سكون كې د الله تعالى د رضاء او د رباني حكم تابع او منقاد وي، د سماوي وحيې او د الهي احكامو په خلاف نه هغه كوم قدم پورته كوي، او نه هم د هغې په خلاف خپله ژبه خوځوي، د ده مقدس وجود، اخلاق او اعمال د ژوندانه په ګردو واقعاتو كې د رباني تعليماتو او د الهي مرضياتو روڼ تصوير او ډېر ښه ممثل دى، چې د هغه له ليدلو څخه غور كوونكو او فكر كوونكو ته د ده په صداقت او د الله جل جلاله له طرفه د ده په مأمور ګرځېدلو كې لږ څه شک او شبهه نشي پاتې كېدى.

وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿٥١﴾

او وویروه (ای محمده !) په دې وحيې سره هغه کسان چې ویرېږي دوی له دې چې ټول به کړل شي دوی رب خپل ته، په داسې حال کې چې نه وي دوی ته بې له دغه (الله) هیڅ ولي دوست (ناصر په دنیا کې) او نه شفاعت کوونکی (د عذابونو دافع په آخرت کې مګر د الله په اذن سره) لپاره د دې چې دوی وساتي ځانونه (خپل ستا په دغه اورولو سره له معاصیو).

وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظَّالِمِينَ ﴿٥٢﴾

او مه شړه هغه کسان چې بولي دوی (عبادت کوي د) رب خپل په اول د ورځې او په آخر د ورځې (یعنې سبا او بېګا) کې، چې غواړي دوی په دې عبادت سره لیدل د مخ د الله تعالی، نشته په تا له حسابه (د اعمالو) د دوی هیڅ شی، او نه له حسابه (د عمل) ستا په دوی هیڅ شی، نو چې وشړې ته دوی؛ پس شې به ته له ظالمانو څخه.

تفسیر: یعنې هر کله چې د دوی ظاهري حال دا راښیي چې دوی شپه او ورځ د الله تعالی په عبادت او رضا غوښتلو کې مشغول دي، نو سم له دې له دوی سره مناسبه معامله وکړئ !، د دوی باطني حال څه دی یا به یې آخر انجام څه کیږي؟؛ د دوی پر دغه تفتیش او محاسبه باندې معاملات نشي موقوفېدی، نه ستاسې دغه حساب د دوی په غاړه دی، او نه د هغو حساب ستاسې په غاړه دی، لهذا بالفرض که تاسې د دولتمندانو د هدایت په طمع داسې غریبان مخلصان له خپله مجلسه وشړئ؛ نو دا به د بې انصافۍ خبره وي. «د کفارو ځینو سردارانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا وغوښتل، چې ځمونږ زړونه غواړي چې ستاسې خبرې واورو، لیکن له تاسې سره خوار او غریب کسان (لکه ابن مسعود، بلال، مقداد، عمار، صهیب، خبیب، سلمان رضي الله تعالی عنهم) ناست وي، نو مونږ د هغوی تر څنګ نشو کېنښاستلی (که دوی له ځانه بېرته کړئ؛ نو مونږ به له تا سره کېنیو او پاڅو، ګوندې ستا دین هم قبول کړو، او له دوی سره یو ځای په کېناستو شرمیږو)، په دې خبره باندې دا آیت نازل شو، یعنې د الله تعالی د طالب لحاظ او خاطر (اګر که غریب هم وي) پر دغو غنیانو او دولتمنو کفارو باندې مقدم دی».

وَكَذَٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لِّيَقُولُوا أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّن بَيْنِنَا ۗ أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِالشَّاكِرِينَ ﴿٥٣﴾

او (لکه چې ازمویلي مو وو سابقه امم په اختلاف د احوالو د دوی) همدارنګه ازمویلي دي مونږ ځینې (غنیان) د دې امت په ځینو (نورو فقیرانو) لپاره د دې چې ووایي (دا غنیان): آیا همدا (خواران) فضل کړی دی الله پر دوی په منځ ځمونږ کې (په هدایت سره)، آیا نه دی الله ښه عالم په شکر کوونکو (په نعمت د اسلام بلکه دی، نو ځکه تفضُّلاً احسان پرې کوي).

تفسیر: یعنې د دولتمندانو ازموینه یې په غریبانو مسلمانانو وکړه، چې دغو مسلمانانو ته خوار او ذلیل ګوري، او تعجب کوي چې آیا دوی څرنګه د الله تعالی د فضل لایق دي، او الله تعالی د دوی زړونو ته ګوري، چې د الله تعالی حق مني.

وَإِذَا جَآءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوٓءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۵۴﴾ وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِينَ سَبِيلُ الْمُجْرِمِينَ ﴿۵۵﴾

او كله چې راشي تاته (اى محمده !) هغه كسان چې تصديق كوونكي دي په آيتونو (د قرآن) ځمونږ؛ نو ووايه (اى محمده ! دوى ته): سلام دى پر تاسې، ليكلى (لازم كړى) دى رب ستاسې پر ځان خپل (تفضُّلاً) رحمت (او داسې يې لازم كړى دى چې) بېشكه شان دا دى؛ هر څوك چې وكړي له تاسې څنې بدي په ناپوهى سره (حقيقتاً يا حكماً) بيا توبه وكړي پس له (كولو د) هغې (بدى) او اصلاح كړي (ښه كړي عمل خپل) نو بېشكه الله ښه ښنونكى (د خطياتو) ډېر مهربان دى. او همداسې چې مو بيان كړل) په تفصيل سره بيانوو آيتونه او لپاره د دې چې ښكاره شي (حق او ظاهره شي) لاره د ګناهګارانو.

تنبيه: دا يې چې فرمايلي دي: «هر څوك چې په ناپوهى له تاسې څنې بدي وكړي»، ښايي چې له دې څنې دا غرض وي، چې هر مؤمن چې بدي او معصيت كوي، كه په ناپوهى وي يا په عمد او قصده سره وي؛ هغه في الحقيقت د هغې بدى او ګناه له بد عاقبته تر يوه حده پورې نا واقفه او بېخبره وي چې يې كوي، كه دى د ګناه د تباه كوونكو نتائجو څخه په پوره ډول خبر او مستحضر وى، نو ولې به يې د هغې په كولو جرأت كاوه؟.

قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللّٰهِ قُلْ لَّآ أَتَّبِعُ أَهْوَآءَكُمْ قَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَّمَآ أَنَا مِنَ الْمُهْتَدِينَ ﴿۵۶﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې بېشكه زه منع كړى شوى يم له دې نه چې عبادت وكړم د هغو شيانو چې عبادت كوئ تاسې (د هغوى) چې غير دي له الله، ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې متابعت نه كوم زه د خواهشونو ستاسې (په عبادت د دوى كې) په تحقيق به ګمراه شم زه په دغه وخت، كې او نه به يم زه له لارې موندونكو څخه.

قُلْ إِنِّي عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّي وَكَذَّبْتُمْ بِهِ مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلّٰهِ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ الْفٰصِلِينَ ﴿۵۷﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشكه زه په ښكاره دليل (حجّت) يم له ربه خپله (چې قرآن او وحي ده) او تاسې دورغ ګڼلى دى هغه دليل، نشته ما سره هغه (عذاب) چې غواړئ تاسې په تلوار سره هغه، نه دى حكم (په تعجيل او تأخير د عذاب او نورو كې) مګر (خاص) الله ته دى، بيانوي (الله) حقه (خبره) او دى (الله) خير (بهتر) د فيصله كوونكو (يا د بيانوونكو) دى.

تفسير: يعنې ما ته د الله تعالى صاف او صريح شهادت او واضح دلائل را رسيدلي دي، چې د هغو له منلو څخه زه د يوه وينښته په اندازه هم نشم منحرف كېدى، تاسې چې هغه ته د دروغو نسبت كوئ، نو د هغه پاى او انجام ته هم فكر وكړئ !.

﴿مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ﴾ «نشته له ما سره هغه عذاب چې غواړئ په تلوار سره تاسې هغه» يعنې د الهي عذاب د نزول واك ځما په قدرت كې نه دى لكه چې كفارو ويل: ﴿اللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَآءِ أَوِ ائْتِنَا

﴿بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ﴾ «اى الله ! كه دا (پيغمبر او دين ئي) حق وي چې مونږ يې دروغ ګڼو؛ نو له آسمانه پر مونږ تيږې (ګټې) راووروه ! يا پر مونږ سخت عذاب راولېږه !».

﴿قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) كه په تحقيق وى ما سره هغه شى چې تاسې په تلوار سره غواړئ هغه (چې عذاب دى نو) خامخا فيصله شوې به وه جګړه په منځ ځما او په منځ ستاسې كې (په هلاك ستاسې، ليكن تعذيب د الله كار دى) او الله ښه عالم دى په ظالمانو (او په وخت د عذابولو د دوى).

تفسير: يعني الله تعالى پر هر چا او په هر وخت او هر ډول چې اراده وفرمايي عذاب ليږي، يا يې نه ليږي، يا ورته د توبې او استغفار توفيق مرحمت فرمايي، دا ګرد د الله جل جلاله په اختيار او قبضه كې دي، او د ما سوا له الله د بل هيڅا حكم او زور نه چليږي.

﴿وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ۭ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۭ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝﴾

او خاص هم دغه الله سره دي كيلي ګانې (كنجياني) د خزانې د غيب چې نه پوهيږي په هغو (بل هيڅوك) مګر (عالم دى پرې) هم دى، او پوهيږي الله په هغه چې په بر (وچه) كې او په بحر (درياب) كې دي، او نه لويږي هيڅ يوه پاڼه (له ونې) مګر چې عالم دى په هغه الله، او نه (لويږي كومه) دانه په تيارو د ځمكې كې او نه دى هيڅ لوند او هيڅ وچ مګر (ثابت شوي دي) په كتاب مبين (لوح محفوظ) كې.

تفسير: يعني د هر شي احوال په لوح محفوظ كې مندرج دي، او هر هغه شيان چې په لوح محفوظ كې دي؛ هغه ټول په علم د الله كې لا له پخوا څخه موجود وو، په دغه اعتبار د دې آيت مضمون حاصل داسې شو چې د ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ هيڅ يو وچ او لوند، وړو كى او لوى شى د الله تعالى د ازلي علم له محيط نه خارج كېدى نشي، بناء په دې د دې ظالمانو د ظاهري او باطني احوالو، او د دوى د سزا وركولو د مناسب وخت او محل پوره او صحيح علم له ده سره شته.

تنبيه: هغه علماء چې «مفاتح» د «مَفْتَح» - بفتح الميم - جمع وايي؛ دوى د «مفاتح الغيب» تر جمه په «غيبي خزانو» سره كړې دى، او د هغوى په نزد چې د مِفتح -بكسر الميم- جمع ده، هغوى د «مفاتح الغيب» ترجمه په غيبي كِيلي ګانو (كنجيانو) سره كوي.

﴿وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝﴾

او الله هغه (لوى ذات) دى چې وفاتوي (حصاروي او ويده كوي) تاسې په شپه كې، او پوهيږي په هر هغه څه چې كسب كړى وي تاسې په ورځې كې (له طاعت او معصيت څخه) بيا پاڅوي تاسې (له خوبه) په دغه (ورځ) كې چې پوره كړ شي اجل (نېټه) مقرره شوې، بيا خاص هم ده ته بېرته ورتلل ستاسې دي، بيا به خبر كړي (الله) تاسې په (جزاء) د هغه څه چې وئ تاسې چې كول به مو (په دنيا كې له خير او شره).

**تفسیر:** یعنې د شپې د ویدېدلو په وخت کې ظاهري احساس او شعور نه پاتې کیږي، او انسان له خپلې شاوخوا بلکه د خپل جسم له احواله هم بېخبره پاتې وي، ګواکې په دغه وخت کې دغه قوه له ده څخه اخیستی شوې ده، (او پوهیږي الله په هر هغه څه چې کسب کړي دي تاسې په ورځې کې له طاعت او معصیت څخه): یعنې په ورځ کې خومره تګ، راتګ، نقل، حرکت، کسب او اکتساب چې واقع کیږي؛ هغه ټول په پوره تفصیل سره د الله تعالی په علم کې موجود دي.

(بیا پاڅوي تاسې له خوبه په دې ورځ کې لپاره د دې چې پوره کړی شئ اجل «نېټه» مقرره شوې)، یعنې که ده اراده کړې وي نو تاسې همغسې چې ویده وئ؛ ویده به پاتې وئ، لیکن د مرګ د نېټې تر پوره کېدلو پورې تاسې در ګرده راویښوي.

(بیا خاص هم ده ته بېرته ورتلل ستاسې دي؛ بیا به خبر کړي دی تاسې په جزا د هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو په دنیا کې له خیر او شره)، یعنې د ورځې کار او د شپې ویدېدل او بیا سبا پاڅېدل دا هره ورځنی منظمه سلسله د دنیوي ژوندون او ورپسې مړ کېدلو او بیا ژوندي کېدلو؛ یوه لنډه نمونه ده، نو ځکه د خوب او بیداری د یادونې په وسیله د «معاد» پر مسئله هم تنبیه کړی شوې ده.

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهِ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً حَتَّىٰ إِذَا جَاءَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ ﴿٦١﴾

او همدی (الله) دی غالب د پاسه په بندګانو خپلو، او لیږي پر تاسې ساتونکي (له ملائکو چې هغه لیکونکې د اعمالو ستاسې کرام الکاتبین دي) تر هغه پورې کله چې راشي یو ستاسې ته مرګ؛ قبضوي روح د ده لیږلي شوې (پرښتې ځمونږ چې ستاسې د ارواحو د قبضولو لپاره لېږلې کیږي)، او دوی هیڅ تقصیر نه کوي (د امر په امتثال کې د اجل له پوره کېدلو څخه وروسته).

**تفسیر:** «حفظة» یعنې هغه پرښتې چې تاسې او ستاسې اعمال ساتي.

**فائده:** د دغو ملائکو په لېږلو کې ښایي دغه حکمت او مصلحت وي، چې مؤمنان د قیامت له شرمندګی او رسوایۍ څخه وویریږي، او له سره ګناه ته زړه ښه نه کړي، او د خپلې اعمالنامې له لوستلو څخه په محشر کې د عامو په محضر کې غافل او بې پروا نشي ! څو د قیامت د ورځې له شرمندګی او رسوایۍ څخه مأمون او مصون پاتې شي.

ثُمَّ رُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ أَلَا لَهُ الْحُكْمُ وَهُوَ أَسْرَعُ الْحَاسِبِينَ ﴿٦٢﴾

بیا به بېرته وروستل شي دوی طرف د الله ته (د خپل عمل د جزاء لپاره) چې مولی (مالک) د دوی دی حق (عادل)، واورئ ! خبردار شئ ! خاص هم ده ته دی حکم او همدی دی ډېر تیز جلت دی له ټولو حسابګرو.

**تفسیر:** یعنې په یوه رپ (لحظه) کې د انسان د ټول عمر حسنات او سیئات ورښکاره کوي.

قُلْ مَنْ يُنَجِّيكُمْ مِنْ ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً لَئِنْ أَنْجَانَا مِنْ هَٰذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ ﴿٦٣﴾ قُلِ اللَّهُ يُنَجِّيكُمْ مِنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنْتُمْ تُشْرِكُونَ ﴿٦٤﴾

ووایه (ای محمده !) څوک به خلاص کړي تاسې له تیارو د بر (وچې) او بحر (دریاب څخه په هغه وخت کې چې) دعاء غواړئ تاسې له الله نه په ښکاره او په پټه سره (او داسې

وایئ چې قسم دی) که خلاص کړي (الله) مونږ له تیارو (او سختیو) څخه نو هرومرو شو به مونږ خامخا له شکر ایستونکو څخه (د نجات په دغه نعمت). ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې الله خلاصوي تاسي له دې (تیارو او سختیو) او له هرې سختۍ څخه بیا هم (پس له دغه نجاته) تاسې شریکوئ (له الله سره نور په عبادت کې).

**تفسیر:** یعنې حق تعالی سره له هغه محیط علم او کامل قدرت چې (لږ څه) بیان یې پاس وشو، فوراً ستاسې د بد عملیو او شرارتونو سزا نه درکوي، بلکه څه مهال (وخت) چې د مصائبو او شدائدو په تیارو کې اخته کېږئ، او هغه په عاجزۍ او زارۍ سره یادوئ ! او پخه وعده کوئ چې «د دې مصیبت څخه له وتلو وروسته به بیا هیڅېږې شرارت نه کوو، او تل به ستا احسان په یاد لرو»، نو ډېر ځلې الله جل جلاله ستاسې لاس نیسي، او له دغو مهالکو او هر قسم سختیو څخه مو ژغوري (محفوظوي)، لیکن بیا هم تاسې پخپلو وعدو ټینګ نه درېږئ، او د مصیبت له آزادۍ څخه وروسته بیا سمدلاسه په بغاوت او یاغیتوب لاس پورې کړئ.

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰٓ أَن يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّن فَوْقِكُمْ أَوْ مِن تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُم بَأْسَ بَعْضٍ ۗ انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾

ووایه (ای محمده !) هم دغه (الله) قادر دی په دې چې ولیږي په تاسې عذاب له پاسه ستاسې (لکه د لوط قوم او اصحاب فیل) یا له لاندې د پښو ستاسې (لکه فرعونیان او قارون)، یا ګډ وډ کړي تاسې فرقې فرقې (چې هره فرقه به بېله بېله مدعا لري، او دغه مخالفت به د مقاتلې سبب شي) او وروڅکوي (الله) ځینو ستاسې ته جنګ (او سختی) د ځینو (نورو)، وګوره (ای محمده !) څرنګه راز راز (قسم قسم) بیانوو مونږ آیتونه (خپل) لپاره د دې چې دوی پوه شي (پرې او پند ترې واخلي).

تفسیر: په دې کې یې د درې ډولو عذابونو بیان وفرمایه:

(۱) هغه چې له پاسه راځي، لکه د تیږو ورېدل، یا طوفاني هوا یا باران.

(۲) هغه چې له پښو لاندې راځي، لکه خسف، زلزله، سیلاو یا نور (یا مراد له «فوق» څخه نه ورېدل د باران دي، او له «تحت» څخه نه زرغونیدل د غلې دي)، دا دواړه خارجي او باندني عذابونه دي؛ چې پر پخوانیو اقوامو مسلط شوي وو، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعاء سره ځمونږ محمدي امت له داسې عمومي عذاب څخه محفوظ شوي دي، یعنې داسې عام عذاب چې د دې امت استیصال او بیخ کني وکړي، لکه چې په پخوانیو امتونو مسلطېده (بفضل الله وکرمه)؛ په دې امت نه نازلیږي، که جزئي او خصوصي واقعې پېښې شي؛ نو د هغو نفي نه ده شوې.

(۳) عذاب چې ښایي د اخلي عذاب ورته وویل شي، د دې امت په حق کې باقي پاتې دی، چې هغه ګوند او ګوندبازي او په خپلو منځو کې سره جنګ، جنجال، جګړې او وینې تویول دي، په «قرآن شریف کې زیاترو کافرانو ته د عذاب وعده ورکړی شوې ده، دلته یې دا را څرګنده کړه، چې دا هم عذاب دی چې پر پخوانیو امتو باندې له آسمانه یا له ځمکې څخه نازل شوی دی، او دا هم عذاب دی، چې انسانان یو او بل په جنګ سره واچوي، او دوی قتل وکړي، یا یې قید یا یې ذلیل کړي، رسول الله مبارک وپوهېد، چې پر دغه امت وروستنی عذاب نازلیږي.

﴿عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ او ﴿عَذَابٌ مُّهِينٌ﴾ او ﴿عَذَابٌ شَدِيدٌ﴾ او ﴿عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ زياتره همدغه وروستني عذاب ته ويل كيږي، او د آخرت عذاب هم يواځې پر همغو كسانو همېشه مسلط كيږي، چې په كفر كې مړه شوي دي (او مړه كيږي).

﴿انظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ﴾ «وګوره اى محمده ! څرنګه مونږ راز راز بيانوو آيتونه خپل لپاره د دې چې دوى پوه شي پرې» يعني په قرآنكريم يا د عذاب په راتګ، ځكه دوى داسې ګڼل چې دا ګردې دروغ او چتې (بېكاره) ويروونكې خبرې دي، عذاب يا نور شيان له سره نه راځي.

وَكَذَّبَ بِهِ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۚ قُل لَّسْتُ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴿٦٦﴾ لِّكُلِّ نَبَإٍ مُّسْتَقَرٌّ ۚ وَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٦٧﴾

او دروغ وباله دا قرآن (يا دغه عذاب) قوم ستا (يعني قريشو) حال دا چې دغه (قرآن يا عذاب) حق دى، ووايه (اى محمده ! دوى ته) نه يم زه په تاسې وكيل (ساتونكى). هرې خبرې ته يو وخت مقرر دى، او ژر به (پرې) وپوهېږئ تاسې.

تفسير: يعني ځما وظيفه دا نه ده، چې ستاسې په تكذيبونو زه پخپله پر تاسې عذاب نازل كړم، يا د هغه وخت يا نوعيت يا يې نور تفصيلات در وښيم، زما كار يواځې پوهول او تنبيه كول دي، (دا د قتال د امر څخه پخوا وو)، له دې نه زيات د هر شي د وقوع خُصوصيات د الله تعالى په علم كې مقدّر، او وخت يې مقرر دى، هر وخت چې يې نېټه ورسيږي، نو تاسې به خپله پرې خبر شئ، چې هغه شيان چې ما تاسې ترې ويرولئ؛ هغه تر كومه ځايه پورې رښتيا دي؟.

وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِي آيَاتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ ۚ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَانُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٦٨﴾

او كله چې ووينې ته هغه كسان چې جګړې كوي (طعن وربورې ترې، مسخرې پرې كوي، ننوځي غوټې وهي) په آيتونو ځمونږ كې؛ نو مخه واړوه له دوى نه (او ورسره مه كښېنه ! او كه ناست وې ترې پاڅېږه !) تر هغې پورې چې مشغول شي دوى په خبرو (نورو كې) غير له قرآن څخه، او كه هير كړ له تا نه (دا اعراض او څنګ كول) شيطان؛ نو مه كښېنه وروسته له يادېدلو (د دې منعې) سره له قوم ظالمانو.

تفسير: يعني هغه خلق چې د آيات الله په طعن، استهزاء او په ناحقه تنقيدونو كې مشغول دي، او خپل ځانونه د عذاب مستحق ګرځوي، تاسې له هغو سره ناسته ولاړه مه كوئ ! او ګډون او راشه درشه ورسره مه كوئ !، څو تاسې هم د هغو په ډله كې ګډ نشئ ! او د عذاب مورد ونه ګرځئ !، لكه چې په يو بل ځاى كې فرمايي: ﴿إِنَّكُمْ إِذًا مِّثْلُهُمْ﴾ د يوه مؤمن د غيرت تقاضا دا نه ده، چې په داسې مجلسونو كې ګډون وكړي، لازم دي چې تل ترې كناره او په څنګ وي !، او كه كله ناڅاپه يا سهواً يكې شريک شي؛ نو له يادېدلو څخه وروسته دې له هغه ځايه پاڅيږي، ځكه چې په همدې كې د عاقبت سمون (برابري)، د دين سلامتي، او طعن او استهزاء كوونكو ته عملي نصيحت او تنبيه ده.

وَمَا عَلَى الَّذِينَ يَتَّقُونَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَلَٰكِن ذِكْرَىٰ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿٦٩﴾

او نشته پر هغو كسانو چې پرهېزګاري كوي له حسابه د دغو (جګړه كوونكو په آيات الله تمسخراً) څخه هيڅ شى (له ګناه)، وليكن (دوى باندې) پند وركول دي لپاره د دې چې ځان وساتي دوى (د هغو كسانو د مجلس له ګډون څخه چې په قرآن پورې تمسخر كوي).

**تفسير:** د دې آيت دوه معناګانې كېدى شي، يعنې كه پرهېزګاران د جګړې كوونكو او طعن ويونكو له مجلس څخه پاڅيږي، او له دوى څنې جلا (جدا) كيږي، نو د طاعنينو له ګمراهۍ او د دوى د ضلالت له دوام څخه هيڅ يوه مؤاخذه او ضرر پر دغو متقيانو نشي راتلى، هو ! د دوى په ذمه د استطاعت په اندازه او له موقع سره مناسب نصيحت كول دي، ښايي چې هغه بدبختان د نصيحت له اورېدلو څخه په خپل خير او شر وپوهيږي، او له خپله انجامه ووېريږي.

يا دا مطلب دى؛ چې كه پرهېزګارانو او محتاطانو ته د كومې معتدّ به ديني يا دنيوي واقعې د ضرورت له امله (وجې) د دوى په مجلس كې د دخول او د ورتګ ضرورت پېښ شي؛ نو دوى ته د طاعنينو د ګناه او پوښتنو هيڅ يو اثر نه ور رسيږي، هو ! د دوى په ذمه د قدرت په شرط نصيحت كول دي، ممكن دي چې كوم وخت په دوى باندې د نصحيت اثر ولويږي.

وَذَرِ الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَعِبًا وَلَهْوًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا ۚ وَذَكِّرْ بِهِ أَن تُبْسَلَ نَفْسٌ بِمَا كَسَبَتْ لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللَّهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ وَإِن تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا ۖ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ۝

او پرېږده ته هغه كسان چې ګرځولى دى دوى دين خپل (چې پرې مكلف وو) لوبې او عبث (چې پرې مسخرې كوي) او غره كړي (غولولي) دي دوى لره حيات دنيوي (ژوندون لږ خسيس نو څكه منكران شوي دي له حشره)، او پند وركوه ته په دغه (قرآن سره خلقو ته) څو (ونه) سپارل شي (هلاک ته) هيڅ نفس په سبب د هغه عمل چې كړى يې وي، حال دا چې نه وي دغه نفس ته بې له الله نه كوم ولي (دوست مانع د آفت په دنيا كې) او نه شفاعتګر (دافع د مصيبت په عقبى كې)، او كه فديه وركړي (دا نفس) هر قسم فديه نو وابه نه خيستى شي دا (فديه، يعنې قبوله به نشي له دې نفس څخه)، دا (مذكورين چې دين يې په لهو او لعب نيولى دى) هغه كسان دي چې سپارلى شوي دي (هلاک ته) په سبب د هغو كارونو چې كړي دي دوى، شته دوى لره څښل له ډېرو ګرمو اوبو او عذاب دى دردناک په سبب د دې چې وو دوى چې كافران كېدل.

تفسير: ﴿اتَّخَذُوا دِينَهُمْ﴾ يعنې خپل هغه دين چې قبلول يې د دوى په ذمه فرض وو، او هغه د اسلام دين دى.

﴿وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا﴾ «او غره كړي (غولولي) دي دوى لره دنيوي حيات او ژوندون لږ خسيس، نو څكه منكران شوي دي له حشره»، يعنې د دنيا په لذتونو مست شول، او عاقبت يې هېر كړ، او مطمئن او بېغمه زړه كښيناتل.

﴿لَيْسَ لَهَا مِن دُونِ اللَّهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ﴾ الآيه - يعنې داسې خلقو ته چې د تكذيب او استهزاء په ګناهونو نيولى شوي دي؛ هيڅ دوست او ملګرى نه پيدا كيږي، چې له دوى سره څه مدد او مرسته وكړي، او په زور يې له الهي عذابه وژغوري (محفوظ كړي)، او نه به كوم سپارښت كوونكي ولري، چې په سعيې او سپارښت سره د دوى څه كار وكړى شي، او نه ترې كوم قسم فديه او معاوضه قبليږي، بالفرض كه كوم مجرم وغواړي چې ټوله دنيا د خپل عذاب په بدل او معاوضه كې وركړي، او ځان خلاص كړي؛ بيا هم نشي خلاصيدى.

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ أُبْسِلُوا بِمَا كَسَبُوا﴾ الآيه - «دا مذكورين چې دين يې لهو او لعب نيولى دى، هغه كسان دي چې سپارلي شوي دي هلاک ته په سبب د هغو كارونو چې كړي دي دوى»، شته دوى لره چنبل (څكل) له ډېرو ګرمو اوبو او عذاب دى دردناک، په سبب د دې چې وو دوى چې كافران كېدل.

قُلْ أَنَدْعُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلَىٰ أَعْقَابِنَا بَعْدَ إِذْ هَدَانَا اللَّهُ كَالَّذِي اسْتَهْوَتْهُ الشَّيَاطِينُ فِي الْأَرْضِ حَيْرَانَ لَهُ أَصْحَابٌ يَدْعُونَهُ إِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَىٰ ۖ وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٧١﴾ وَأَنْ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَاتَّقُوهُ ۚ وَهُوَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٢﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) آيا عبادت وكړو مونږ غير له الله نه هغه شي ته چې نه نفع رسولى شي مونږ ته، او نه تاوان رسولى شي مونږ ته؟ !، او بېرته وركرځولى شو مونږ په پوندو خپلو (شرك) ته وروسته له هغه چې سمه صافه لاره وښووله مونږ ته الله؛ په شان د هغه سړي چې بيولى وي دى پيريانو په ځمكه (چول بيابان) كې په داسې حال كې چې (له وركېدلو د لارې) حيران وي، ده لره ملګري وي؛ بولي دوى دا سړى (له ډېره شفقته) په لورې د سمې صافې لارې چې (ورته وايي) راځه مونږ ته !، ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې بېشكه هدايت د الله (اسلام) همدا دى هدايت (نه نور)، او امر (حكم) كړى شوى دى مونږ ته چې اسلام راوړو (غاړه كېږدو) رب (پالونكي) د تمامو عالميانو ته. او بل په دې (حكم شوى دى مونږ ته) چې قائموئ (سم اداء كوئ سره له ټولو حقوقو) تاسې لمونځ او وويرېږئ تاسې له دغه (الله) نه، او دغه الله همغه ذات دى چې ده ته به ورټول كړى شئ تاسې (په قيامت كې).

تفسير: يعنې د مسلمانانو شان دا دى چې ګمراهانو ته نصيحت وكړي، نو له داسې موحد، مبلّغ، او مجاهد بنده ځنې دا توقع كول فضول ده چې: دى به د ما سوا الله په مخ كې خپل سر ټيټ كړي، چې د دغو غير الله په قبضه كې نه نفع شته نه نقصان، يا به د اهل باطل د صحبت له امله (وجې) د توحيد او ايمان سمه لاره پرېږدي، او د شرك او نورو غولوونكو شيانو په لوري به ژر ژر په خپلو پوندو ولاړ شي، كه معاذ الله داسې وشو، نو د ده مثال د هغه مسافر په شان دى، چې په لاره دخپلو بلدو ملګرو سره په يوه چول او بيابان كې سفر كوي، او ناڅاپه بيابانيې غول (خبيث جن) يې وغولوي، او لاره ترې وركه كړي، دى په څلورو خواوو كې پرېشان او سرګردان ګرځي، او د ده ملګري د ده د خير غوښتلو لپاره ورنارې كړي، چې «ځمونږ په لوري راځه ! چې سمه صافه لاره دا ده»، مګر دى د حيرانۍ او مخبوط الحواسي په حالت كې په هيڅ شي نه پوهيږي، او د دوى په لوري هم نه ورځي.

همداسې پوهېږئ ! چې د آخرت مسافر ته هم د اسلام او توحيد سمه صافه لاره ټاكلې (مقرر) شوې ده، او هغه څوك چې د هغه په رفاقت او معيت سره دغه سفر طي كيږي؛ هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم او د ده تابعان دي، كله چې دا بدبخت د شيطانانو او مضلانو په منګلو كې ورشي، او د ضلالت په بيديا كې سرګردانه ګرځي، د ده هاديان او رفيقان د همدردۍ له لارې دى د حق د لارې په طرف رابولي، مګر دى هيڅ نه اوري، او نه پرې پوهيږي، نو اى د اشرارو ډلې ! ستاسې هم دا مقصد دى، چې مونږ له خپلو ځانونو څخه همداسې مثال جوړ كړو؟ دا آيت د هغو مشركانو په ځواب كې نازل شوى دى، چې دوى له مسلمانانو څخه د اسلام د ترك غوښتنه كړې وه.

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۖ وَيَوْمَ يَقُولُ كُنْ فَيَكُونُ ۚ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۚ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ ۚ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ﴿٧٣﴾

او دغه (الله) همغه ذات دى چې پيدا كړي يې دي آسمانونه او ځمكه په حقه سره (نه بې له فائدې) او (ياد كړه) هغه ورځ چې وبه وايي (الله هر شي ته) چې موجود شه ! (يعنې پيدا شه !) نو موجود (يعنې پيدا) به شي، خبره د دغه (الله) حقه (رښتيا) ده، او خاص دغه (الله) لره دى ملك

(سلطنت) په هغه ورځ کې چې پوکى وکړ شي په صور (شپېلى) کې، عالم دى (الله) په ټولو پټو او ښکاروو، او هم دى دى ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي) خبردار (ښه پوه په هر شي).

تفسير: په دغې ورځې د قيامت کې به په ظاهري او مجازي ډول هم د ما سوا الله څخه د بل چا سلطنت نه وي، ﴿لِّمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۖ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ «يعني هغه الله جل جلاله چې داسې صفات لري، چې ذکر يې په دغو دريو آيتونو کې وشو؛ هغه د دې لايق دى چې مونږ يې د فرمان تابع اوسو، او د ده په مخ کې خپل انتهايي عبوديّت اظهار او اختيار کړو»، او په هره شېبه کې ترې ويرېږو، او د همدې خبرې حکم پر مونږ شوى دى؛ چې له دغه حکم څخه په هيڅ حالت کې مخ نشو ګرځولى.

وَإِذْ قَالَ إِبْرَٰهِيمُ لِأَبِيهِ ءَازَرَ أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا ءَالِهَةً ۖ إِنِّىٓ أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٧٤﴾

او (ياد کړه اى محمده !) هغه وخت چې وويل ابراهيم پلار خپل آزر ته: آيا نيسې ته بتان په ألوهيت سره، بېشکه چې زه وينم تا او قوم ستا په ګمراهى ښکاره کې.

تفسير: ﴿لِأَبِيهِ ءَازَرَ﴾ «پلار خپل آزر ته»، د انسابو عالمانو د ابراهيم عليه السلام د پلار نوم «تارخ» ليکلى دى، ممکن چې «تارخ» يې نوم او «آزر» يې لقب وي، ابن کثير «رحمه الله» له مجاهد «رحمه الله» او نورو څخه نقل کړي دي چې «آزر» د بت نوم وو، ښايي د هغه بت په خدمت کې د ډېر پاتې کېدلو له امله (وجې) د ده لقب «آزر» کېښود شوى وي. والله أعلم.

﴿أَتَتَّخِذُ أَصْنَامًا ءَالِهَةً﴾ الآيه ـ «آيا ته نيسې بتان په ألوهيت سره، بېشکه چې زه وينم تا او قوم ستا په ګمراهى ښکاره کې» له دې نه به صافه او صريحه ګمراهي بله څه وي؟ چې أکرم المخلوقات «انسان» د خپلو لاسونو جوړې کړې تيږو او نورو ته د الله تعالى نوم او درجه ورکړي، او د هغه په مخ کې سر په سجده پريوځي، او له هغه څخه خپل مراد وغواړي.

وَكَذَٰلِكَ نُرِىٓ إِبْرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ ٱلْمُوقِنِينَ ﴿٧٥﴾

او (لکه چې مو وروښوده ابراهيم ته د ده د قوم د ګمراهى قبحه) همدارنګه ښيو مونږ ابراهيم ته عجائبات د آسمانونو او د ځمکې (لپاره د دې چې دليل ونيسي په وحدانيت ځما) او لپاره د دې چې شي له يقين کوونکو (عياناً هم لکه چې وو بياناً).

تفسير: يعني همغسې چې د بت پرستى شناعت، قبح او بدي مونږ ابراهيم عليه السلام ته ظاهره کړه، او د هغه قوم مو پرې قائل کړ؛ همداسې د علويّاتو او سفليّاتو د ترکيبي نظام له اعماقو او نهايت محکمو او عجيبو او غريبو اسرارو څخه مونږ ابراهيم عليه السلام مطلع کړ، چې د هغو په ليدلو د الله تعالى پر وجود او وحدانيت او د الوهيت په نورو صفاتو او د ارضي او سماوي مخلوقاتو پر محکومانه عجز او بېچارګى استدلال ونيسي، او د خپل قوم د کواکب پرستى او هيکل سازى عقيده هم على وجه البصيرت رد کړي، او دى پخپله هم د حق اليقين په اعلى مرتبه فائز شي.

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ ٱلَّيْلُ رَءَا كَوْكَبًا ۖ قَالَ هَٰذَا رَبِّى ۖ فَلَمَّآ أَفَلَ قَالَ لَآ أُحِبُّ ٱلْءَافِلِينَ ﴿٧٦﴾

نو کله چې تياره شوه په ده باندې شپه نو وليد (ابراهيم) يو ستورى، ويې ويل: دا رب ځما دى (ستاسې په زعم سره)، نو کله چې غروب يې وکړ (غائب شو) وويل (ابراهيم): چې زه دوست نه ګڼم غروب کوونکي (غائبيدونکي چې په الوهيت يې ونيسم بلکه بد يې ګڼم).

تفسیر: آیا څوك دا خبره خوښوي چې يو مجبور بندي او بيګاري سړی د شهنشاهۍ پر تخت باندې کېنوي؟.

پاتې شو د «ابراهيم عليه السلام» ﴿هَٰذَا رَبِّي﴾ ويل؛ یا خو د استفهام انکاري په لهجه دی، يعنې آيا همدا ځما رب دی؟ يا د تهکم (قهر) او تبکيت (سرزنش) په ډول يې ويلي دي، يعنې همدا دی رب ځما ستاسې له عقيدې سره سم، لکه چې موسی عليه السلام فرمايلي دي: ﴿وَانظُرْ إِلَىٰ إِلَٰهِكَ الَّذِي ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا﴾ أي في زعمك، پرته له دې نه د مفسرينو نور اقوال هم شته، مګر ځمونږ په خيال همدا راجح ده، والله أعلم.

فَلَمَّا رَأَى الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هَٰذَا رَبِّي ۖ فَلَمَّا أَفَلَ قَالَ لَئِن لَّمْ يَهْدِنِي رَبِّي لَأَكُونَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّالِّينَ ﴿٧٧﴾

پس کله چې وليده (ابراهيم) سپوږمۍ راختونکې ځلېدونکې وويل (ابراهيم) دا رب ځما دی (ستاسې په زعم)، نو کله چې غروب يې وکړ (غائبه شوه)؛ وويل (ابراهيم): قسم دی که هدايت ونه کړي ماته رب ځما نو هرومرو (خامخا) به ګرځم ضرور له قومه ګمراهانو.

تفسير: ځرنګه چې سپوږمۍ ډېر حسين او ځلېدونکی ستوری دی، که الله جل جلاله د سړي لاس ونه نيسي نو ببشکه چې انسان د هغه په ځلېدلو او ښايست مفتون کيږي.

فَلَمَّا رَأَى الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هَٰذَا رَبِّي هَٰذَا أَكْبَرُ ۖ فَلَمَّا أَفَلَتْ قَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٧٨﴾

بيا کله چې وليد (ابراهيم) لمر راختونکی (ځلېدونکی) وويل (ابراهيم): دا دی رب ځما (ستاسې په زعم سره) دا (له ګردو څخه) لوی دی، پس کله چې (لمر هم) غروب وکړ (غائب شو)؛ وويل (ابراهيم): ای قومه ځما ! ببشکه زه يم بېزار له هغو شيانو چې تاسې (يې) شريکوئ (له الله سره).

تفسير: يعنې په فلکي نظام کې له ګردو څخه لويه سيّاره لمر دی، مګر دغه ګرد لمر، سپوږمۍ، ستوري او نور ګرد د الله تعالی مخلوق او د هغه تابعان دي، چې په معين وخت ځمونږ په نظر راځي، او هيڅ يو له دوی څخه داسې قدرت او توان نه لري؛ چې يوه شېبه هم له خپله ځايه څه تقديم او تاخير وکولی شي، يا په خپل سر کوم حرکت وکړي، نو بيا دې مخلوق ته د خالق تعالی حقوق ورکول او شريك ګرځول ځومره سپين سترګي او ګستاخي؟ او په کومه اندازه د نفرت وړ (لايق) يو کار دی؟.

إِنِّي وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ حَنِيفًا ۖ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٧٩﴾

ببشکه ما ګرځولی (متوجه کړی) مې دی مخ خپل هغه ذات ته چې پيدا کړي يې دي اسمانونه او ځمکې، حال دا چې حنيف يم (ګرځېدونکی يم له ګردو باطلو اديانو څخه حق دين ته) او نه يم زه له مشرکانو.

تفسير: يعنې له ګردو مخلوقاتو ځنې يوه لوري ته شوی، صرف د خالق جل وعلا لوی دربار يې ټينګ ونيو، چې د هغه په قدرت کې ګرد علويّات او سفليّات دي.

وَحَاجَّهُ قَوْمُهُ ۚ قَالَ أَتُحَاجُّونِّي فِي اللَّهِ وَقَدْ هَدَانِ ۚ وَلَا أَخَافُ مَا تُشْرِكُونَ بِهِ إِلَّا أَن يَشَاءَ رَبِّي شَيْئًا ۗ
وَسِعَ رَبِّي كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۗ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٨٠﴾

او جګړه وکړه له ده سره قوم د ده (په توحيد کې) وويل (ابراهيم) آيا جګړه کوئ تاسې له ما سره په (وحدانيت د) الله کې، حال دا چې په تحقيق هدايت کړی (لاره د توحيد ښوولې ده الله)

ماته، او نه ویرېږم له (ضرره د) هغو (بتانو) چې تاسې يې شريکان کوئ له الله سره (په هيڅ وخت) مګر چې اراده وفرمايي رب ځما د څه (تکليف رسولو ما لره نو رسولی يې شي)، احاطه کړېده رب ځما په ټولو شيانو له جهته د علم، آيا نو تاسې پند نه اخلئ (فکر نه کوئ او عاجز له قادره نشئ بيلولی؟).

**تفسير:** د ابراهيم عليه السلام قوم به ويل چې: ته ځمونږ د معبودانو توهين کوې، نو وويرېږه چې چېرې ته د هغه له وباله لېونی نشې (معاذ الله)، يا په بل کوم مصيبت کې اخته نشې، نو د هغه ځواب داسې ورکوي چې: «زه به له دوی نه ولې ويرېږم؟ ځکه چې د دوی په لاس کې نفع، نقصان، راحت او زحمت هيڅ يو شی نشته، هو ! که ځما پروردګار ماته څه تکليف راورسوي؛ نو له هغه څخه په دنيا کې هيڅوک نه دي مستثنی، هم ده ته په خپل محيط علم سره معلومه ده، چې کوم يو سړی په کوم يو حالت کې ښايي ژوندون وکړي، او کوم شی به ورته وړ (لايق) او مناسب وي».

وَكَيْفَ أَخَافُ مَآ أَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُونَ أَنَّكُمْ أَشْرَكْتُم بِٱللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِۦ عَلَيْكُمْ سُلْطَٰنًا ۚ

او څرنګه به ويرېږم زه له هغو (بتانو) چې شريکان کړي دي تاسې (له الله سره په عبادت کې) او نه ويرېږئ تاسې له دې چې بېشکه تاسې شريک کړی دی له الله سره هغه شی چې نه دی رالېږلی (الله) پـه (شريک کولو) د هغه پر تاسې هيڅ برهان (دليل سند).

**تفسير:** يعنې ستاسې له معبودانو څنې به زه ولې ويرېږم حال دا چې د دوی په واک (اختيار) او قبضه کې نه نفع ده نه ضرر، او نه د توحيد غوره کول کوم جرم دی، چې له هغه څخه به زه انديښنه کوم، هو ! تاسې د الله تعالی باغيان او مجرمان يئ، او الله تعالی د نفع او ضرر مالک هم دی، نو تاسې ته له خپلو جرائمو څنې وېره پکار ده.

فَأَيُّ ٱلْفَرِيقَيْنِ أَحَقُّ بِٱلْأَمْنِ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨١﴾ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَلَمْ يَلْبِسُوٓا۟ إِيمَٰنَهُم بِظُلْمٍ أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ ﴿٨٢﴾

نو کومه يوه له دې دواړو ډلو څخه مستحقه او لايقه ده په امن سره (له عذابه د الله ووايئ !) که يئ تاسې چې پوهېږئ (په دې چې له چا نه ويره پکار ده؟ کله چې دوی لاځواب شول؛ نو پخپله الله ځواب فرمايي). هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او نه دی ګډ کړی دوی ايمان خپل له ظلم (له لوی نقصان سره چې شرک دی)؛ دغه کسان (چې خپل ايمان يې له شرکه ساتلی دی) هم دوی لره شته امن (له عذابه) او هم دوی دي لار موندونکي.

**تفسير:** په صحيحو احاديثو کې منقول دي، چې کريم نبي «عليه أفضل الصلاة والتسليم» دلته د ظلم تفسير په شرک سره فرمايلی دی، لکه چې په (۲۱ جزء د لقمان د سورت په (۱۳) آيت (۲) رکوع کې دي): ﴿إِنَّ ٱلشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ ګواکې د ظلم تنوين د تعظيم لپاره دی، نو د مضمون حاصل به داسې کيږي، چې «مأمون او مهتدي يواځې همغه کسان کېدی شي، چې داسې يقين او ايمان ولري چې په هغه کې د شرک هيڅ اثر او نښه نه وي»، او که سره له ايمان لرلو په الله تعالی شرک پرې نږدي؛ نو هغه شرعي ايمان نه دی، او نه يې د هغه په وسيله امن او هدايت په برخه کېدی شي، وهو کما قال الله تعالی: ﴿وَمَا يُؤْمِنُ أَكْثَرُهُم بِٱللَّهِ إِلَّا وَهُم مُّشْرِكُونَ﴾ (۱۳ جزء د يوسف عليه السلام د سورت (۱۰۶) آيت (۱۲) رکوع).

منقول دي کله چې دغه آيت نازل شو؛ اصحاب کرام «رضوان الله تعالی عليهم أجمعين» سخت وويرېدل، او دغه امر پر هغوی ډېر شاق او دروند واقع شو، بالآخر يې د رسول عليه السلام په حضور کې عرض وکړ، «أينا لم يظلم نفسه يا رسول الله؟» صلی الله عليه وسلم، «په مونږ کې کوم يو سړی به داسې وي چې پر خپل ځان باندې يې ظلم نه وي

کړی»، نو په دغه تقدير سره مونږ ګرد د الله جل جلاه له عذابه غير مأمون، او له هدايته محروم شو؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم د اصحابو په ځواب کې داسې ارشاد وفرمايل: «ليس كذلك، إنما هو الشرك، ألم تسمعوا قول لقمان لابنه: ﴿يٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾»

يعنې په ﴿وَلَمْ يَلْبِسُوٓا إِيمَانَهُم بِظُلْمٍ﴾ کې له ظلم څخه شرک مراد دی، او مطلقه ګناه ترې مراده نه ده، نو په دغه صورت تاسې ته هيڅ تردّد او انديښنه نه ده پکار، اګر که مفسرينو او محدثينو پر دغه آيت راز راز (قسم قسم) تقريرونه او بيانونه کړي دي، مګر په دغه ترجمه کې د هغو ګرد مطالب په کې ثابت پراته دي.

وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ ءَاتَيْنَٰهَآ إِبْرَٰهِيمَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ ۚ نَرْفَعُ دَرَجَٰتٍ مَّن نَّشَآءُ ۗ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿٨٣﴾

او دا (چې تېر شو) دليل ځمونږ دی، چې ورکړی وو مونږ هغه ابراهيم ته په (مقابله د) قوم د ده (چې پرې غالب شي)، پورته کوو مونږ درجې هر چا ته چې اراده وفرمايو (د پورته کولو يې)، بېشکه رب ستا ډېر حکمت والا دی (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي)، ښه عالم (په ټولو احوالو).

تفسير: يعنې ابراهيم عليه السلام ته داسې قاهره دلائل ورکول، او هغه ته په خپل قوم باندې برى عطا کول، او په دنيا او آخرت کې هغه سرلوړی ګرځول؛ د همغه عليم او حکيم له کارونو څخه کېدی شي، چې د هر سړي استعداد او قابليت ورته معلوم دی، او پخپل حکمت سره هر شی د هغه په مناسبه موقع اومقام کې ږدي.

وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ ۚ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوحًا هَدَيْنَا مِن قَبْلُ ۖ وَمِن ذُرِّيَّتِهِۦ دَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَىٰ وَهَٰرُونَ ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٨٤﴾

او وبانښه مونږ ابراهيم ته اسحاق (چې د ده ځوی او د اسرائيلي انبياوو پلار دی) او يعقوب (مو هم وروبانښه چې لمسی يې وو، دغو) ټولو ته هدايت کړی وو مونږ، او نوح ته مو هدايت کړی وو له (ابراهيم څخه) پخوا، او (هدايت مو کړی وو) اولادې د ده ځنې داود او سليمان ته، او ايوب او يوسف ته، او موسى او هارون ته، او همداسې لکه چې (دغو انبياوو ته مو بدل ورکړ)؛ بدل ورکوو مونږ محسنانو (نيکو کارانو) ته.

تفسير: يعنې نه يواځې دا چې مونږ ابراهيم عليه السلام په ذاتي علم او فضل سره سرلوړی کړ، بلکه په زړښت کې د اسحاق عليه السلام په شان ځوی او يعقوب عليه السلام غوندې لمسی مو هم وروبانښه، يعقوب عليه السلام همغه (اسرائيل) دی چې ده ته بني اسرائيل منسوب دی، چې په زرهاوو انبياء په کې مبعوث شوي دي، بلکه همغسې چې د قرآن کريم په يو بل ځای کې مذکور دي، وروسته له ابراهيم عليه السلام د الله تعالى له جانبه نبوت اکثر د ده په اولاده کې اينښود شوی دی.

وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَىٰ وَعِيسَىٰ وَإِلْيَاسَ ۖ كُلٌّ مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٥﴾ وَإِسْمَٰعِيلَ وَٱلْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا ۚ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ ءَابَآئِهِمْ وَذُرِّيَّٰتِهِمْ وَإِخْوَٰنِهِمْ ۖ وَٱجْتَبَيْنَٰهُمْ وَهَدَيْنَٰهُمْ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٨٧﴾ ذَٰلِكَ هُدَى ٱللَّهِ يَهْدِى بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۚ وَلَوْ أَشْرَكُوا۟ لَحَبِطَ عَنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٨٨﴾

او (هدايت مو کړی وو) زکريا او يحيى ته او عيسى او الياس ته، دوی ګرد (ټول) دي له صالحانو (کاملانو) ځنې. او (هدايت مو کړی وو) اسماعيل او اليسع ته، او يونس او لوط ته، او دا ټولو ته فضيلت ورکړی وو مونږ پر تمامو عالميانو. او (فضيلت مو ورکړی وو په نبوت او اسلام سره)

ځینو ته له پلرونو د دوی، او له اولادې د دوی او له ورونو د دوی، او غوره کړي وو مونږ دا ټول انبیا او لار ښوونه کړې وه مونږ دوی لره لارې سمې صافې ته. دا (دین د انبیاوو) هدایت د الله دی چې لار ښوونه فرمایي (الله) په دې سره هغه چاته چې اراده وفرمایي له بندګانو خپلو نه، او که (فرضاً) شریک کړی وای دوی له (الله سره نور) نو خامخا به ضایع شوي وای له دوی نه هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې.

تفسیر: یعنې د خالص توحید او د الله تعالی د معرفت او طاعت سمه صافه لاره همغه ده؛ چې پر هغې الله تعالی خپل مقبول بندګان په خپل فضل او توفیق سره بیایي، او په صله او جزا د هغه کې د دوی درجې د دوی استعداد او لیاقت سره سم لوړوي.

﴿وَلَوۡ أَشۡرَكُواْ﴾ الآیه: دا مونږ ته خبر راکړی شوی دی، چې شرک (داسې لویه ګناه ده چې) د انسان تمام ښه عملونه حبط او باطلوي، د نورو به څه حیثیت پاتې شي که معاذ الله په فرض محال سره داسې حرکت د پیغمبرانو او مقرّبانو څخه صادر شي؛ د دوی عمل به هم ضایع شي، (امّا صدور یې له دوی څخه متوقع نه دی، لکه چې مو په فرض محال سره دې خبرې ته اشاره وکړه).

أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ ءَاتَيۡنَٰهُمُ ٱلۡكِتَٰبَ وَٱلۡحُكۡمَ وَٱلنُّبُوَّةَۚ فَإِن يَكۡفُرۡ بِهَا هَٰٓؤُلَآءِ فَقَدۡ وَكَّلۡنَا بِهَا قَوۡمٗا لَّيۡسُواْ بِهَا بِكَٰفِرِينَ ﴿٨٩﴾

دغه (تېر پیغمبران) هغه کسان دي چې ورکړي دي مونږ دوی ته کتابونه او حکمت (علم د شریعت) او پیغمبري، پس که کافر (منکر) شي په دې (آیتونو د قرآن) دغه (کافران د مکې) پس په تحقیق مقرر کړي مونږ په (ایمان او عمل) د دې داسې یو قوم (ټولګی) چې نه دي دوی په دې (قرآن) کافران.

تفسیر: یعنې که د مکې کافران یا نور منکران له دې شیانو (کتاب، شریعت، او نبوت) څخه انکار وکړي، نو څمونږ دین په هغو پورې موقوف او تړلی نه دی، ځکه چې مونږ یو بل قوم چې مهاجرین او انصار رضي الله تعالی عنهم او اتباع د دوی دي؛ لپاره د منلو، ساتنې، او ترویج د دې شیانو مقرر کړي دي، چې دوی څمونږ د هیڅ خبرې څخه مخ اړونکي نه دي.

أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُۖ فَبِهُدَىٰهُمُ ٱقۡتَدِهۡۗ قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًاۖ إِنۡ هُوَ إِلَّا ذِكۡرَىٰ لِلۡعَٰلَمِينَ ﴿٩٠﴾

دغه (انبیاء) هغه کسان دي چې هدایت کړی دی الله (دوی ته) نو په طریقه د دوی اقتداء وکړه (ای محمده !) ووایه چې زه نه غواړم له تاسې په دغه (تبلیغ د قرآن) څه اجر (مزدوري) نه دی دا (قرآن) مګر یواځې ذکر (پند، وعظ) دی لپاره د ټولو عالمیانو.

تفسیر: یعنې ګرد انبیاء علیهم السلام په عقائدو او د دین په اصولو او کلّي مقاصدو کې سره متحد دي، نو د ګردو دستور یو دی، او هر یو نبي د هغو پر عمل مأمور دی، تاسې هم مأمور یئ چې پر همغې مستقیمې طریقې ټګ وکړئ !.

ګواکې په دې آیت سره یې تنبیه وکړه چې په اصولي ډول ستاسې لاره د سابقینو انبیاوو له اصولو او لارې بېله نه ده، پاتې شول فرعي اختلافات نو هغه د هرې زمانې د مناسبت او استعداد په اعتبار پخوا له دې هم واقع کېدل، که اوس هم واقع شي؛ نو هیڅ مضائقه نه لري.

**فائده:** د اصولو علماوو د دې آیت د عموم څخه دغه مسئله ایستلې ده، چې که نبي کریم صلی الله علیه وسلم په کومه معامله کې د سابقه وو شرائعو ذکر وفرمایي؛ نو هغه د ده د امّت په حق کې هم سند دی، په دې شرط سره چې شارع له هغه څخه په کلّي یاجزئي ډول سره انکار نه وي فرمایلی.

﴿قُل لَّآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ أَجۡرًا﴾ الآیه - «ووایه ! چې زه نه غواړم له تاسې څخه په تبلیغ د قرآن څه اجر (مزدوري) او اجرت غوښتونکی نه یم، ځما اجر خو د الله تعالی په دربار کې ثابت دی، هو ! که تاسې له نصیحت څخه انحراف وکړئ، نو خپلو ځانونو ته به نقصان ور رسوئ، په ګرد جهان کې یو نه یو خو به دا نصیحت ومني، هر هغه څوک چې انکار وکړي؛ هغه به خپل ځان ته نقصان ورسوي، او ښایي چې په خپلې دغې محرومی، بدبختی او بدحالی وژاړي.

وَمَا قَدَرُواْ ٱللَّهَ حَقَّ قَدۡرِهِۦٓ إِذۡ قَالُواْ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٖ مِّن شَيۡءٖۗ قُلۡ مَنۡ أَنزَلَ ٱلۡكِتَٰبَ ٱلَّذِي جَآءَ
بِهِۦ مُوسَىٰ نُورٗا وَهُدٗى لِّلنَّاسِۖ تَجۡعَلُونَهُۥ قَرَاطِيسَ تُبۡدُونَهَا وَتُخۡفُونَ كَثِيرٗاۖ وَعُلِّمۡتُم مَّا لَمۡ تَعۡلَمُوٓاْ
أَنتُمۡ وَلَآ ءَابَآؤُكُمۡۖ

او نه دی کړی تعظیم دغو (یهودانو) د الله په حق تعظیم د ده سره کله چې وویل دوی چې: نه دی نازل کړی الله پر هیڅ بشر (انسان) باندې هیڅ شی، ووایه (ای محمده دوی ته !) چا نازل کړی وو کتاب هغه چې راوړی وو هغه موسی، حال دا چې نور (رڼا) او هدایت دی لپاره د خلقو، چې ګرځوئ تاسې هغه (کتاب) پاڼه پاڼه، ښکاره کوئ یي (خلقو ته هغه چې ستاسې خوښې وي) او پټوئ تاسې ډېرې (ترې چې ستاسې نه وي خوښې لکه محمدي نعت)، او ښوولي شوي دي تاسې ته هغه (احکام د تورات) چې پوه نه وئ (پرې) تاسې، او نه پلرونه ستاسې.

تفسیر: ﴿مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٖ مِّن شَيۡءٖ﴾ الآیه - یعنې نه کتاب نه وحي او نه شرعي احکام، بلکه هیڅ شی الله تعالی نه دي رالیږلي.

﴿قُلۡ مَنۡ أَنزَلَ ٱلۡكِتَٰبَ ٱلَّذِي جَآءَ بِهِۦ مُوسَىٰ﴾ یعنې که په رښتیا سره الله تعالی پر هیڅ یو انسان هیڅ یو شی نه دی نازل کړی، نو د «مقدس تورات» په شان یو عظیم الشأن کتاب له کومه راغی؟ چې په الهي احکامو او مرضیاتو یې بندګان خبرول، او د رشد او هدایت عجیبه عجیبه رڼا یې په خپل منځ کې لرله، او د هغو شیانو علم یې تاسې ته درعطا کاوه، چې پرې نه تاسې او نه ستاسې پلار نیکه بلکه ټول انبیاء علیهم السلام حتی ټول بني آدمان هم بې د الله تعالی له اعلامه تش په خپل عقل او حواس نه پوهیدل، او چا هغه په موسی علیه السلام نازل کړی؟.

دا منل کیږي چې نن ورځ تاسې هغه کتاب پاڼې پاڼې او ټوک ټوک کړی دی، او خلقو ته مو سم له خپلې خوښې سره ښوولی دی، او د هغه ډېر احکام او اخبار مو پټ کړي دي، او د هغه اصلي رڼا همغسې چې وه؛ اوس نه ده پاتې، بیا هم هغه برخه یې چې پاتې ده، همغه دا راښیي، کله چې د هغې عظیم الشأني مانی کنډوالې هم داسې دي، نو الله خبر چې په خپله زمانه کې به یې عروج څومره عظیم الشأن وو؟ (نو کله چې دوی د دې سوال ځواب تاسې ته ای ځما رسوله در نه کړی، نو پاک الله فرمایي چې:

قُلِ ٱللَّهُۖ ثُمَّ ذَرۡهُمۡ فِي خَوۡضِهِمۡ يَلۡعَبُونَ ٩١

ووایه (ای محمده !) چې الله (نازل کړی وو ! بل ځواب نشته) بیا پرېږده دوی چې په خرافاتو خپلو کې لوبې کوي (او په باطلو خپلو کې غوپې وهي؛ مشغولیږي).

وَهَٰذَا كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا ۚ وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَهُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ ﴿۹۲﴾

او دا قرآن هغه کتاب دی چې نازل کړی دی مونږ هغه برکتناک (فائده ناک) تصدیق کوونکی د هغه (کتابونو) دی، چې وړاندې له ده دي، او لپاره د دې چې وویروې ته اصل د ټولو کلیو (کلو) (یعنې اهل د مکې) او هغه چې چاپېر دي له دې او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی (یقین یې کړی دی) په آخرت؛ ایمان لري دوی په دغه (قرآن یا په محمد) حال دا چې هم دوی په لمونځونو خپلو ساتنه کوي (د ټولو حقوقو د دوام او رعایت سره یې).

تفسیر: ﴿وَلِتُنذِرَ أُمَّ الْقُرَىٰ وَمَنْ حَوْلَهَا﴾: «او لپاره د دې چې وویروې ته اصل د ټولو کلیو (کلو، یعنې مکیان ـ مکې والا) او هغه چې چاپېر له دې دي»، «أم القرى» د کلیو (کلو) اصل او بېخ ته وایي.

مکه معظّمه د ګردو عربو دیني او دُنیوي مرجع وه، له جغرافیایي حیثیته هم د پخوانی دنیا د وسطي مرکز په ډول واقع ده، نوې دنیا (امریکا) ترې لاندې پرته ده، د حدیثو د روایاتو په مطابق له اوبو څنې ځمکه جوړه شوې ده، نو لومړی همدغه ځای څرګند شوی وو، نو بنا پر دغو وجوهاتو مکه معظمه په «أم القرى» سره یاده کړه شوه، او له شاوخوا څخه یې مراد یا عرب دي، ولې چې په دنیا کې لومړني مخاطبان همدوی وو، او د دوی په وسیله د دنیا نورو خلقو ته خطاب وشو، یا به ګرد جهان مراد وي.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ وَمَن قَالَ سَأُنزِلُ مِثْلَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ ۗ

او څوک دی ډېر ظالم؟ (یعنې هیڅوک نشته) له هغه چا نه چې تړي پر الله دروغ، یا وایي چې وحي کړی شوې ده ماته، حال دا چې وحي نه وي کړی شوي ده ته د هیڅ شي، او (بل څوک دی ډېر ظالم یعنې نشته له) هغه چا چې وایي: ژر به (زه هم) نازل کړم (وبه لیکم له ځانه) په مثل د هغه کتاب چې نازل کړی دی الله (تاته ای محمده ! چې قرآن دی).

تفسیر: پر الله جل جلاله له بهتان تړلو څخه بنایي دا مراد وي، چې د الله جل جلاله په لوري د داسې خبرې نسبت وکړ شي؛ چې د ده د لوړ شان سره هیڅ نسبت ونه لري، او وړ (قابل) او لایق یې نه وي، مثلا یو مخلوق له هغه سره شریک وګرځوي، یا ورته د ځوی او ښځې تجویز وکړي، یا داسې ووایي: ﴿مَا أَنزَلَ اللَّهُ عَلَىٰ بَشَرٍ مِّن شَيْءٍ﴾ یعنې الله تعالی د بندګانو د هدایت هیڅ سامان نه دی مهیأ کړی، نو هر څوک چې داسې ووایي؛ سخت ظالم دی، همداسې هغه څوک چې د نبوّت او د رسالت دعوی په دروغو سره وکړي، یا داسې یوه غټه خبره وکړي، چې د الله تعالی د کلام په شان زه هم خبرې راوړی شم، لکه چې ځینو مشرکانو به ویل: «ولو نشاء لقلنا مثل هذا»، دا ګردې خبرې انتهایي ظلم او بد سترګي ده، چې د هغې د سزا حال لږ څه وروسته راځي.

وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنفُسَكُمُ ۖ

او که ووینې ته (ای محمده !) ظالمان یعنې کافران په هغه وخت کې چې ظالمان په (باطني او روحاني) سختیو د مرګ کې وي، حال دا چې پرښتې (د عذاب) غځوونکې وي د لاسونو خپلو (د روح د قبض لپاره نو وایي دوی ته چې) راوباسئ تاسې ارواح خپل (چې یې قبض کړو مونږ که یې ایستی شئ یا یې له عذابه وباسئ !).

تفسیر: یعنې د روح قبضولو او سزا ورکولو لپاره لاسونه غځوي، او د زیات تشدید او د غیظ د اظهار لپاره وایي چې راوباسئ خپل ارواح.

﴿ٱلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ ٱلْهُونِ بِمَا كُنتُمْ تَقُولُونَ عَلَى ٱللَّهِ غَيْرَ ٱلْحَقِّ وَكُنتُمْ عَنْ ءَايَٰتِهِۦ تَسْتَكْبِرُونَ ۝٩٣﴾

نن ورځ به جزا درکړه شي تاسې ته عذاب سپکوونکی (یعنې چې له سخت تکلیف سره ذلت او رسوایي هم وي) په سبب د هغه چې وئ تاسې چې ویل به مو پر الله (وینا) ناحقه او وئ تاسې چې له آیتونو د ده څخه به مو تکبّر کاوه (او نه به مو منل، نو وبه ګورئ یوه قبیحه منظره).

تفسیر: یعنې د تکبر له لارې د الله تعالی آیتونه او نبېې دروغجنې کوئ (او وبه ویل شي کفارو ته کله چې بیا ژوندي شي په قیامت کې داسې چې)

﴿وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَٰدَىٰ كَمَا خَلَقْنَٰكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَتَرَكْتُم مَّا خَوَّلْنَٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُورِكُمْ ۖ وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ زَعَمْتُمْ أَنَّهُمْ فِيكُمْ شُرَكَٰٓؤُا۟ ۚ لَقَد تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنكُم مَّا كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ۝٩٤﴾

او خامخا په تحقیق راغلي یئ تاسې مونږ ته یواځې (لپاره د حساب او جزا) لکه چې پیدا کړي مو وئ تاسې اول ځلې، او پرېښودل تاسې (په دنیا کې) هغه (شیان) چې درکړي وو مونږ تاسې ته وروسته د شاوو خپلو، او نه وینو مونږ له تاسې سره شفاعت کوونکي ستاسې، هغه چې ګمان کولو تاسې چې بېشکه دوی په (تربیه او استحقاق د عبادت) ستاسې کې شریکان دي (له الله سره) خامخا په تحقیق پرې شو (هغه پیوند چې وو) په منځ ستاسې کې، او ورک شو له تاسې څخه هغه شی چې وئ تاسې چې ګڼل به مو (چې دا شفیعان دي).

تفسیر: ﴿وَلَقَدْ جِئْتُمُونَا فُرَٰدَىٰ﴾ «او په تحقیق راغلي یئ تاسې مونږ ته یواځې یواځې لکه چې مو پیدا کړي وئ اول ځلې، یعنې نه به ستاسو په تن جامې وي، او نه به ستاسې په پښو پڼې وي، ما ته به تش تور لاس راځئ، او پر هغو سازونو او سامانونو مو چې فخر او ویاړ کولو، هغه مو له ځانه سره نه دی راوړی، او هلته مو پرېښئ دی.

﴿وَمَا نَرَىٰ مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ﴾ الآیه - یعنې هغه شیان چې تاسې د مصیبت او اړتیا (احتیاج) په وخت کې د خپلې مرستې (مدد) لپاره ټاکلي (مقرر کړي) وو؛ هغوی چېرې لاړل؟ چې نن مونږ دوی ستاسې د حمایت او سپارښت (سفارش) او مرستې (مدد) لپاره حاضر نه وینو، او د نصرت او حمایت هغه ګردې علاقې او اړیکې له منځه ورکې دي، چې تاسې پرې لافې او باتې وهلې.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ فَالِقُ ٱلْحَبِّ وَٱلنَّوَىٰ ۖ يُخْرِجُ ٱلْحَىَّ مِنَ ٱلْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ ٱلْمَيِّتِ مِنَ ٱلْحَىِّ ۚ ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ۝٩٥﴾

بېشکه الله چوونکی (خیروونکی) د دانې دی (په ایستلو د ډکې (تېغ) سره) او د زړي (په ایستلو د نیالګي - تیغي سره) راباسي ژوندی له مړي (لکه شین ډکی له وچې دانې، ولد له نطفې، مؤمن له کافر، عالم له جاهل نه) او ایستونکی د مړي دی له ژوندي (لکه وچه دانه له شین ډکې، نطفه له حیوان، کافر له مؤمن، جاهل له عالم نه)، دغه (ژوندی کوونکی او مړ کوونکی) الله دی، نو کوم طرف ته ګرځولی شئ تاسې؟ (د الله له عبادت څخه).

تفسیر: یعنې زړی او دانه یې په ځمکه کې د خنبولو څخه وروسته چولې، او څیرلې او تک شین ډکی ترې زرغونوي، له ځنداره د بې ځانه، او له بېځانه د ځنداره ایستل داسې دي؛ لکه چې انسان له نطفې او نطفه له انسان څخه پیدا کوي،

دا د همدې الله تعالی کار دی، بیا تاسې چې هغه پر بېږدئ نو چېرې ځئ؟ آیا بل داسې کوم لوی ذات موندلی شئ چې د داسې قدرتونو او کمالاتو څېښتن (مالک) او دا ډول لوی کارونه په سر ور رسولی شي؟.

فَالِقُ الْإِصْبَاحِ ۚ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ﴿٩٦﴾

چوونکی (د رڼا) د سبا دی (بیوونکی د تیارو د شپې، راوستونکی د رڼا د ورځې) او ګرځولې يې ده شپه آرامځی او (ګرځولې يې دی) لمر او سپوږمۍ (نښې د) حساب (لپاره د اوقاتو)، دغه (ذکر شوي شیان) اندازه کول دي د ښه غالب (قوي په انفاذ د احکامو) ښه عالم (خبردار په تدبیر د عالم).

تفسیر: یعنې د شپې له تیارو څخه د صبح صادق هغه تک سپین تار چې راڅرګندیږي، د هغه رایستونکی هم دا پاک الله دی، د شپې او د ورځې، د لمر او سپوږمۍ، د ستورو او نورو حکیمانه نظام، او د دوی د تګ او رفتار هغه شمېر او حساب چې ده ټاکلی او مقرر کړی دی، په هغه کې د یوه ویښته په اندازه هم لاندې باندې او زیاتوالی او نقصان له سره نه پېښیږي.

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٩٧﴾

او دغه (الله) همغه (ذات) دی چې پیدا کړی يې دي تاسې ته ستوري لپاره د دې چې لاره وموموئ د هغو (په وسیله) سره په تیارو د بر (وچې په بیابانونو کې) او (په تیارو د) بحر (دریاب) کې، په تحقیق ښکاره بیان کړي دي مونږ آیتونه (د قدرت او توحید خپل) لپاره (د هغه) قوم چې پوهیږي (او پرې استدلال کولی شي).

تفسیر: یعنې په دوی سره بلا واسطه لاره معلومه کړئ، یا بالواسطه لکه قطب ښوونکی او نور جغرافیایي آلات.

وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ ﴿٩٨﴾

او دغه (الله) هغه ذات دی چې پیدا کړي يې يئ تاسې (ګرد ـ ټول) له نفس یوه څخه (چې آدم دی) نو (شته تاسې ته یو) ځای د قرارۍ (په شاګانو د پلرونو یا په سر د ځمکې کې) او یو ځای د امانت (د مور په نس یا په قبر کې)، په تحقیق ښکاره بیان کړي دي مونږ آیتونه (قدرت او توحید خپل) لپاره د هغه قوم چې ښه پوهیږي (او پرې استدلال کولی شي).

تفسیر: «مستقرّ» د دربدلو هسې ځای چې په هغه کې هستوګنه وشي، او «مستودع» د سپارلو او د امانت کېښودلو ځای ته وایي، دا يې لغوي معنی شوله، د دې دواړو د مصداق په تعیین کې دمفسرینو اختلاف دی، خو څمونږ هغه مضمون ډېر ښه خوښیږي؛ چې شاه صاحب په «موضح القرآن» کې لیکلی دی: «یعنې لومړی سپارلی کیږي د مور ګېډې ته چې هلته ورو ورو دنیوي أثرات په کې پیدا کړي، بیا يې دنیا ته راولي، او دلته ورته هستوګنه او تقرّر ورکوي، بیا يې قبر او هدیرې ته سپاري، او ورو ورو هلته د أخروي ژوندون اثرات په کې پیدا کوي، او بیا قرار ورته بخښي په جنت کې یا يې وراچوي په دوزخ کې».

وَهُوَ الَّذِيٓ أَنزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ نَبَاتَ كُلِّ شَيْءٍ فَأَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا وَمِنَ النَّخْلِ مِن طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَجَنَّٰتٍ مِّنْ أَعْنَابٍ وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَٰبِهٍ ۗ انظُرُوٓا۟ إِلَىٰ ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَيَنْعِهِۦٓ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ لَأَيَٰتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٩٩﴾

او دغه (الله) هغه (ذات) دی چې نازلې (رالېږلې) کړي یې دي له (طرفه د) آسمانه اوبه، نو رایستلي دي مونږ په دې (اوبو) سره زرغونه د هر شي (زرغونیدونکي)، نو رایستلي دي مونږ له هغه (زرغونه) شخه شين (کښت فصل) چې بیا راباسو مونږ له دې (شنه ډکي) شخه دانې یو په بل سورې (لکه وږې)، او (راباسو) له (جنسه د) خُرما شخه (داسې خُرما چې راووځي) له غلافه (د وږي) د هغې شخه وږي نژدې (ځمکې ته یا یو د بل سره) او (راباسو) باغونه د انګورو او (راباسو) زیتون (خونه) او انار، په دې حال چې یو له بل سره مشابه وي (په پاڼو کې)، او نه وي متشابه (بلکه بېل وي په خوند کې)، وګورئ تاسې طرف د مېوې د هرې ونې ته کله چې مېوه ونيسي، او پوخوالي د هغې ته، بېشکه په دغو (تېرو ټولو) کې خامخا دلائل (د قدرت او توحيد) دي لپاره د هغه قوم چې ایمان لري (تصديق کوي).

تفسير: ﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكُمْ﴾ الآیه ـ «بېشکه په دې تېرو ټولو کې خامخا دلائل د قدرت او توحيد دي لپاره د هغه قوم چې ایمان لري او تصديق کوي»، د الله تعالی هغه صفات او افعال او د قدرت مظاهر چې په دې رکوع کې بيان شوي دي؛ د ده پر وجود، وحدانيت، او کامل الصفات والي واضح استدلال دی، مګر که غور وکړ شي؛ نو د وحيې او د نبوت مسئله هم تر ډېره ځايه پورې ترې حل کيږي، ځکه کله چې حق تعالی پخپل فضل او رحمت سره ځمونږ د دنيوي ژوندون، او د مادي حوائجو د انتظام او انصرام لپاره دومره ارضي او سماوي اسباب مهيا کړي دي؛ نو داسې ويل به څومره غلط او چټي (بېکاره) وي، چې ځمونږ د اخروي او روحاني ضروریاتو د پوره کولو هيڅ وسيله او سامان يې نه دی پيدا کړی، يقينا هغه کريم رب چې ځمونږ د جسماني غـذا د ودې او نشونما لپاره لـه آسمانه اوبه رالېږلې کړي دي؛ نو ځمونږ د روحاني تغذيې لپاره يې هم د نبوّت او وحيې باران نازل کړی دی، لکه چې پاک الله د بر او بحر په تيارو کې د ستورو په وسيله ظاهري هدايت او لارښوونه کوي، نو څرنګه امکان لري، چې د باطني هدايت او لارښوونې لپاره يو ستوری هم د روحانيت په آسمان کې نه وي روڼ کړی؟ !.

پاک الله وروسته د شپې له تيارې بيا د صبح صادق رڼا راولي، او مخلوقاتو ته يې موقع ښېلې ده، چې په خپلو دنيوي کارونو او چارو کې د لمر او سپوږمۍ له رڼا څخه په يوه معين حساب سره منتفع او مستفيد شي، نو بيا څنګه ويلی کېدی شي چې د کفر، شرک، ظلم، عدوان، فسق فجور او نورو په تپه تياره شپه کې د هغه مطلق هادي له لوري هيڅ يوه د هدايت کومه سپوږمۍ نه ده پيدا کړې؟ ! او نه يې د صبح صادق نور خپور (خور) کړی، او نه د هغې شپې د خاتمه ورکولو لپاره يې کوم لمر راخېژولی دی.

وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ ۖ وَخَرَقُوا۟ لَهُۥ بَنِينَ وَبَنَٰتٍۭ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾

او مقرر کړي دي (کفارو) الله ته شريکان جنيان (پيريان) حال دا چې پيدا کړي دي (الله) دغه (جن او شياطين هم) او تړي (جوړوي ځينې کفار) لپاره د الله ځامن او لوڼې بې له علمه (له خپل جهالت نه)، پاکي ده الله لره (له ګردو عيبونو) او ډېر پورته دی (شان د ده) له هغو (بدو خبرو) چې بيانوي (يې ورته) دوی.

تفسير: له «جن» څخه دلته مراد «شياطين» دي، څرنګه چې د کفر او شرک ارتکاب د شيطان په اغواء سره کيږي، نو ځکه د ده په اغواء او اضلال د غير الله عبادت کول ګواکې د هغه عبادت وشو، ابراهيم عليه السلام د بت پرستی د ترديد په ضمن کې فرمايلي وو: ﴿يَٰٓأَبَتِ لَا تَعۡبُدِ ٱلشَّيۡطَٰنَ﴾ (د مريم سورت ۳ رکوع)، په سورت يس ۶۰ آيت ۴ رکوع ۲۳ جزء کې ارشاد شته چې: ﴿أَلَمۡ أَعۡهَدۡ إِلَيۡكُمۡ يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعۡبُدُواْ ٱلشَّيۡطَٰنَ﴾، ملائکې به په قيامت کې فرمايي: ﴿قَالُواْ سُبۡحَٰنَكَ أَنتَ وَلِيُّنَا مِن دُونِهِمۖ بَلۡ كَانُواْ يَعۡبُدُونَ ٱلۡجِنَّۖ أَكۡثَرُهُم بِهِم مُّؤۡمِنُونَ﴾ (۲۲ جزء د سبأ سورت، (۵) رکوع، (۴۱) آيت).

يا به له جن څخه د جنياتو قوم مراد شي، چې د دوی له ځينو مشرانو څخې به د جاهليت په زمانه کې استعانت او پناه غوښتل کېده: ﴿وَأَنَّهُۥ كَانَ رِجَالٞ مِّنَ ٱلۡإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٖ مِّنَ ٱلۡجِنِّ﴾ (۲۹ جزء د الجن سورت (۶) آيت (۱) رکوع).

په هر حال هغوی ټپله څمونږ په شان د الله تعالی عاجز مخلوق دی، نو سره له مخلوقيته به دوی څه رنګه د خالق تعالی شريکان شي.

﴿سُبۡحَٰنَهُۥ﴾ الآيه - يعني الله جل جلاله پاک دی له شرکت څخه، او د الله تعالی شان ډېر پورته او لوړ دی، او له ترکيب او تحليل څخه بيخي پاک او منزّه دی، نو د پلار او ځوی تصور د ده په نسبت څرنګه کېدی شي؟.

بَدِيعُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُۥ وَلَدٞ وَلَمۡ تَكُن لَّهُۥ صَٰحِبَةٞۖ وَخَلَقَ كُلَّ شَيۡءٖۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيمٞ ﴿١٠١﴾

(الله) بې له نمونې پيدا کوونکی د آسمانونو او د ځمکې دی، څرنګه به وي ده ته ځوی، لور، حال دا چې نشته ده ته هيڅ ښځه، او پيدا کړی دی (الله) هر شی او هم دی پر هر شي ښه عالم (ښه دانا) دی.

تفسير: تعجب دی ! لکه چې تاسې حقيقتاً د الله لپاره اولاد تاکئ (خوښوئ)، نو د ده د اولاد لپاره به مور څرنګه تجويزوئ؟ او د دې مور تعلّق به له الله تعالی سره په څه ډول سره قبلوئ؟.

نصرانيان مسيح عليه السلام ته د الله تعالی ځوی وايي، ليکن داسې جسارت هغوی هم نشي کولی، چې صدّيقه بي بي مريمه (العياذ بالله) د «الله تعالی» ښځه وبولي، او د مېړه (خاوند) او ښځې په تعلقاتو قائلان شي، کله چې داسې نه ده؛ نو د «بي بي مريمې» له ګېډې ځنې پيدا شوی هلک څرنګه د الله تعالی ځوی کېدی شي؟.

په دنيا کې نور کوچنيان (ماشومان) هم پاک الله د دوی د ميندو له ګېډو ځنې پيدا کوي، او دوی (معاذ الله) د الله تعالی نسلي اولاد نه ګڼل کيږي، او دا فرق چې يو هلک يواځې له (جبرئيلي) نفخې څخه بيا د عادي اسبابو له واسطې څخه پيدا کړ شي، او نور د عامو اسبابو په سلسله پيدا کړل شي، د أبوّت او بنوّت (پلارتوب او ځويتوب) پر مسئله هيڅ يو اثر نشي اچولی، دغه تخليق که په اسبابو يا مسبباتو سره وي، يا د خارقه عاداتو په وسيله؛ د دغو ګردو خالق همغه پاک الله دی، او همغه پوهيږي چې د کوم شي پيدا کول په څه ډول او په څه وخت له مصلحت او حکمت سره سم دي.

ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمۡۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ خَٰلِقُ كُلِّ شَيۡءٖ فَٱعۡبُدُوهُۚ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ وَكِيلٞ ﴿١٠٢﴾

همدغه (ذات موصوف په دغو صفاتو سره) الله دی رب ستاسې، نشته هيڅ معبود (لايق د عبادت) مګر هم دی، دی پيدا کوونکی دی د هر شي؛ نو عبادت کوئ د دغه (الله يواځې) او هم دی پر هر شي وکيل (ساتونکی کار جوړوونکی) دی.

تفسير: ښايي د الله جل جلاله عبادت د دې له امله (له وجې) وکړی شي، چې دی د پورتنيو ذکر شوو صفاتو له سببه په ذاتي طور سره د معبوديت استحقاق لري، او له دې وجهې هم چې د ګردو مخلوقاتو کار جوړول هم د ده په قدرت او اختيار کې دی.

﴿لَا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾ ۱۰۳

نشي موندلی (او احاطه نشي کولی) پر الله سترګې، او الله مومي سترګې (ويني يې او يا احاطه کوي په سترګو) او هم دی نهايت مهربان او نهايت باريک بين، ښه خبردار دی.

تفسير: شاه صاحب د دې مطلب داسې اخيستی دی چې: «په سترګو کې دا قوت نشته چې الله تعالی وګوري، هو ! که دی د لطف او کرم له لارې د خپل ځان د ښکارولو اراده وفرمايي؛ نو سترګو ته همغسې قوت هم ورعطا کوي»، مثلا په آخرت کې به مؤمنانو ته حسب المراتب د الله جل جلاله رؤيت ور په برخه کيږي، لکه چې د کتاب له نصوصو او سنتو څخه ثابته ده.

د سلفو مفسرينو څخه ځينو د ادراک معنی په احاطې سره کړېده، يعنې سترګې له سره هغه نشي احاطه کولی، او په آخرت کې به رؤيت وي، او احاطه به نه وي، هو ! د ده شان هم دا دی، چې په ګردو ابصارو او مبصراتو يې احاطه کړېده، په دې تقدير سره د «لطيف» تعلق به له ﴿لَا تُدْرِكُهُ﴾ سره، او د «خبير» ارتباط به له ﴿وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ﴾ سره وي.

﴿قَدْ جَاءَكُمْ بَصَائِرُ مِنْ رَبِّكُمْ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيظٍ﴾ ۱۰۴

(ووايه ای محمده ! دوی ته) په تحقيق راغلي دي تاسې ته واضح دلائل له طرفه د رب ستاسې؛ نو هر څوک چې وويني (دغه واضح دلائل او ايمان پرې راوړي) نو نفع يې د خپل ځان ده، او هر څوک چې ړوند شو (له دغو دلائلو او ايمان پرې رانه وړي، نو ضرر يې) په ده (بار) دی، او نه يم زه په تاسې ساتونکی (چې ستاسې اعمال به ساتم، او بيا به تاسې ته پرې جزا درکوم، بلکه زه رسول الله يم، او پر ما تش تبليغ دی).

تفسير: اګر که مونږ پاک الله نشو ليدلی، مګر د ده بصيرت زياتوونکې علامې او دلائل ځمونږ په مخ کې شته، هر څوک چې خپلې سترګې پرانيځي؛ نو ضرور الله تعالی مومي، او هر څوک چې له خپل ځانه ړوند جوړ کړي، نو دی به خپل ځان ته تاوان ورسوي، آيا دا ځما په غاړه ده چې څوک خامخا ليدلو ته مجبور کړم؟ .

﴿وَكَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ وَلِيَقُولُوا دَرَسْتَ وَلِنُبَيِّنَهُ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ ۱۰۵

او همداسې راز راز (قسم قسم) بيانوو مونږ آيتونه (لپاره دعبرت) او لپاره د دې چې ووايي دغه (کفار چې) لوستلي زده کړي دي تا (له بل چا څخه) او لپاره د دې چې واضح بيان کړو دا قرآن لپاره د هغه قوم چې پوهيږي.

تفسير: يعنې خپل آيتونه له مختلفو خواوو، او په عجيبو او غريبو ډولونو سره ځکه بيانوو؛ چې تاسې يې ګردو خلقو ته ورسوئ، او په دوی کې به د استعدادونو او احوالو له اختلاف څخه دوه ډلې جوړې شي، ضد کوونکې او ناپوهان خو به داسې وايي چې داسې علوم او معارف او مؤثر مضامين د يو أمّي او نالوستي سړي له خولې ځرنګه وځي؟ ! هرومرو (خامخا) به دی په مختلفو وختونو کې دا خبرې له بل چا څخه زده کوي، او بيا يې مونږ ته اوروي، مګر پوهانو او انصاف لرونکو او حق خوښوونکو خلقو ته حق ضرور واضح کيږي، او داسې شيطاني شُکوک او شبهات زائليږي.

(یا دا چې دا تېر آیتونه بیا بیا بیانوو په مقتضی د بالغه حکمت خپل سره، پس له دې هم کله له خوفه کله له رجا، کله له وعده کله له وعیده، چې اوریدونکي پرې عبرت واخلي، او چې دا قسم وینا د بشر له مقدوره خارج ده، او لپاره د دې چې بیان کړو دا قرآن لپاره د هغه قوم چې مؤمنان دي په دې چې دا کلام الله دی).

اِتَّبِعْ مَآ أُوْحِیَ إِلَیْكَ مِن رَّبِّكَ ۖ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ وَأَعْرِضْ عَنِ ٱلْمُشْرِكِینَ ﴿۱۰۶﴾

پیروي کوه (ای محمده !) د هغه حکم (قرآن) چې وحي کړی شوی دی تاته له رب ستا، نشته هیڅ لایق د عبادت مگر هم دی، او مخ گرځوه له مشرکانو (او په خبرو یې پروا مه کوه).

تفسیر: یعنې تاسې پر واحد الله جل جلاله اعتماد ولرئ ! او د ده پر حکم ټگ وکړئ ! او د مشرکانو له جهل او عناده سترگې واړوئ !، او داسې اندېښنه مه کوئ ! چې و لې دوی د هسې روښانو واضحو دلائلو او بیاناتو د اورېدلو سره بیا هم په سمه لاره نه راځي؟.

وَلَوْ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشْرَكُوا۟ ۗ

او که اراده فرمایلې وی الله (د عدم شرک د دوی)؛ نو شرک به نه وی کړی دوی.

تفسیر: یعنې د حق تعالی تکویني حکمت د دې مقتضي نه دی چې دې گرد عالم په جبر سره مؤمنان کړي، بېشکه که اراده وفرمایي نو پر گرد جهان کې به یو مشرک هم پاتې نشي، لیکن له شروع څخه د انساني فطرت نظام یې داسې اېښی دی، چې که انسان کوښښ وکړي نو یقیناً هدایت قبلولی شي، خو بیا هم په منلو باندې یې بیخي مجبور او مضطر نه دی.

وَمَا جَعَلْنَـٰكَ عَلَیْهِمْ حَفِیظًا ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَیْهِم بِوَكِیلٍ ﴿۱۰۷﴾

او نه یې گرځولی مونږ ته پر دوی ساتونکی (څارونکی د اعمالو د دوی)، او نه یې ته پر دوی وکیل (کتونکی چې په ایمان یې مجبور کړې).

تفسیر: یعنې ستاسې فرض تبلیغ او د الهي احکامو اتّباع ده، د دوی د اعمالو ذمه وار او ځواب ویونکی خو تاسې نه یئ.

وَلَا تَسُبُّوا۟ ٱلَّذِینَ یَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ فَیَسُبُّوا۟ ٱللَّهَ عَدْوًۢا بِغَیْرِ عِلْمٍ ۗ

او کنځل مه کوئ (ای مؤمنانو !) هغو (معبودانو) ته چې عبادت کوي دغه (کفار د هغو) بې له الله؛ نو کنځل به وکړي دوی (هم) الله ته په ناحقه سره بې له پوهې (له خپل جهالته).

تفسیر: یعنې تاسې خپل تبلیغ او نصیحت فرمایئ ! او خپل فرض په ښه ډول سره ادا کړئ !، وروسته له دې نه که بیا هم دوی په خپل کفر او شرک باندې دوام وکړي؛ نو د هغه مسئولیت د دوی په غاړه دی، او ذمه واري یې پر تاسې نشته، هو ! دا خبره ضروري ده چې تاسې پخپله بې ضرورته د دوی د زیات کفر او تعنّت سبب ونه گرځئ، مثلاً فرض یې کړئ، که د دوی د مذهب تردید، یا د بحث او مناظرې په سلسله کې تاسې په غصه شئ، او د دوی باطلو معبودانو او مقتدایانو ته سبّ او کنځل وکړئ؛ چې د دې نتیجه به داسې شي، چې هغوی به هم په ځواب کې ستاسې د بر حق معبود په نسبت بې ادبي کوي، او له جهالته به ده ته زیاړې او کنځلې کوي، په دې صورت کې به د خپل واجب التعظیم معبود د اهانت سبب تاسې پخپله وگرځئ، نو ځکه له دې نه تل احتراز وکړئ !.

دکوم مذهب د اصولو او فروعو اغلاط په معقولې طريقې سره ښکارول، يا د هغه پر کمزورئ او رکاکت په تحقيقي او الزامي طريقو سره تنبيه کول بېل شي دی، ليکن د کوم قوم د لويانو او معبودانو په نسبت د تحقير او توهين په ډول زړه دردوونکې خبرې ښې نه دي، او پاک قرآن هغه له سره جائز نه بولي.

كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ عَمَلَهُمْ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۰۸﴾

په شان د دغه (ښايست د عبادت د بتانو دوی ته) ښايسته کړی مونږ هر امت (فرقې) ته عمل د دوی (نېک وي که بد)، بيا به رب د دوی ته بيا ورتګ د دوی دی (په آخرت کې) پس خبر به کړي (الله) دوی په هغه شي چې وو دوی چې کاوه به (يې په دنيا کې نو په جزا به يې رسوي).

تفسير: يعني ځرنګه چې دنيا دار الامتحان دی؛ او د هغې نظام مونږ داسې ايښی دی، او داسې اسباب مو سره راټول کړي دي، چې دلته هر قوم پخپلو اعمالو، دودونو، او دستورونو نازيږي، او فخر پرې کوي، او د انسان دماغ داسې نه دي جوړ شوي؛ چې فقط د صداقت پر قبلولو او منلو باندې مجبور شي، او د غلطی په لوري د تللو هيڅ ځای ورته پاتې نه وي.

هو ! کله چې د پاک الله په دربار کې حاضر شي او له ګردو (ټولو) حقائقو سره مخامخ شي، نو هلته به وپوهيږي، او د دې خبرې پته به ورته ولګيږي، چې هغه کارونه چې په دنيا کې يې کړي دي ځرنګه وو؟

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَىِٕنْ جَآءَتْهُمْ اٰيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ وَمَا يُشْعِرُكُمْ ۙ اَنَّهَاۤ اِذَا جَآءَتْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۹﴾

او قسمونه خوري دغه (کفار) په الله باندې په ډېرو سختو قسمونو خپلو سره چې خامخا که راغله دوی ته هغه معجزه (چې يې غواړي دوی) نو هرومرو (خامخا) به ايمان راوړي پرې، ووايه (ای محمده ! دوی ته): بېشکه خبره دا ده چې معجزې په نزد د الله دي (او زه نه يم پرې قادر)، او څه شي خبر کړي يئ تاسې (ای مؤمنانو بلکه بې خبره يئ چې) بېشکه دا (مطلوبې) معجزې کله چې راشي (دوی ته) (بيا هم) نه راوړي ايمان دوی.

تفسير: ځينو مسلمانانو ته داسې خيال پيدا شو، چې ډېر ښه ! که د دوی دا غوښتنې پوره شي، او دغه حجت هم تمام شي، نو څه کيږي؟ لهذا د دې په نسبت فرمايي، چې تاسې نه يئ خبر چې دغه سرکښان او ضد کوونکي کسان د دې فرمايشي علامو له ليدلو نه وروسته بيا هم ايمان راوړونکي نه دي، او بيا به سم له سنت الله سره دوی د دې خبرې مستحق وګرځي، چې فوراً پوپنا شي، لکه چې د دې سورت په شروع کې مو په تفصيل سره هغه وليکل: (فرمايشي معجزې لکه دا چې د صفا غر زر وګرځوي يا نور).

وَنُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَاَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّنَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱۰﴾

او آړوو مونږ زړونه د دوی (له قبلولو د حق نه) او سترګې د دوی (له ليدلو د حق نه، نو ايمان نه راوړي) لکه چې ايمان يې نه دی راوړی (په نورو معجزاتو) اول وارې، او پرېږدو مونږ دوی په ګمراهی د دوی کې، حال دا چې دوی متحيران او متردّدان وي.

تفسير: يعني کله چې په کفر او سرکښۍ باندې همېشه والی او دوام وشي؛ نو نتيجه به يې داسې کيږي، چې مونږ د دوی زړونه او سترګې کږه وو، بيا د حق د پوهېدلو او ليدلو توفيق نه مومي، «په موضح القرآن» کې راغلي دي چې الله جل جلاله هغو کسانو ته چې هدايت ورکوي؛ په همغه اول ځلې چې حق آوري، هغه په انصاف سره قبلوي، او هغه چې له اوله ضد او هنډه کوي، که علامې يې هم وګوري؛ نو څه حيلې او پلمې (تدبيرونه) ورته جوړوي.

وَلَوْ أَنَّنَا نَزَّلْنَا إِلَيْهِمُ الْمَلَائِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتَىٰ وَحَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ ﴿١١١﴾

او که بېشکه مونږ رالیږلي مو وی دغو (کفارو) ته (په غوښتنه د دوی) پرښتې، او خبرې کړي وی له دوی سره مړیو (لکه چې دوی وایي)، او جمع کړي وی مونږ دوی ته هر شی (چې په دنیا کې دي) مخامخ؛ نو نه به وو دغه (کفار) چې ایمان راوړي (په هیڅ وخت کې) مګر (په وقت د ارادې فرمایلو د الله (د ایمان د دوی) ولیکن زیات د دوی جاهلان دي (نه پوهیږي).

تفسیر: د ﴿وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُونَ﴾ ترجمه ځینو مفسرینو داسې کړې ده: «لیکن زیات مسلمانان نه پوهیږي په دې چې دغه کفار ایمان نه راوړي، اګر که داسې معجزې هم ووینې»، او ځینې مفسرین داسې ترجمه کوي: «ولیکن اکثر د دې کفارو نه پوهیږي په نه راوړلو د ایمان خپل باندې؛ اګر که راوړلی شي دوی ته داسې معجزې هم».

وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيَاطِينَ الْإِنسِ وَالْجِنِّ يُوحِي بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُورًا ۚ وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوهُ ۖ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُونَ ﴿١١٢﴾

او همداسې ګرځولي (پیدا کړي) وو مونږ هر نبي ته دښمن شیطانان د انس (انسانانو) او د جن (پیریانو)، ورښوولې به (او وسوسه به یې اچوله) ځینو د دوی ځینو (نورو) ته، ښایسته کړی شوی خبرې لپاره د غولولو، او که اراده فرمایلې وای رب ستا، نو نه به وو کړې دوی دا (کارونه چې د زخرف وحي او غرور دي)، پس پرېږده دوی او هغه چې دوی له ځانه دروغ جوړوي (چې کفر دی).

تفسیر: همداسې چې دغه مشرکان اومعاندان په داسې چټې فرمائشونو تاسې ربړوي (تکلیف درکوي)، او په راز راز (قسم قسم) حیلو او پلمو (بهانو) د حق له لارې د خلقو ښویول غواړي؛ همداسې د نورو رسولانو په مقابل کې هم شیطاني قوتونو کار کولو، تر څو هغه رسولان هم پرې نږدي، چې پخپلو پاکو مقاصدو (د خلق الله هدایت) کې بریالي (کامیاب) شي.

وَلِتَصْغَىٰ إِلَيْهِ أَفْئِدَةُ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوا مَا هُم مُّقْتَرِفُونَ ﴿١١٣﴾

او لپاره د دې چې میل وکړي دې دروغو ته زړونه د هغو کسانو چې ایمان نه راوړي په آخرت (قیامت باندې) او لپاره د دې چې خوښ (هم) کړي دا دروغ، او لپاره د دې چې وکړي دوی (له ګناهونو) هغه چې دوی یې کسب کوونکي دي (چې پرې کړه شي).

أَفَغَيْرَ اللَّهِ أَبْتَغِي حَكَمًا وَهُوَ الَّذِي أَنزَلَ إِلَيْكُمُ الْكِتَابَ مُفَصَّلًا ۚ وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ مِّن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ ۖ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِينَ ﴿١١٤﴾ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا ۚ لَّا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِهِ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿١١٥﴾

آیا پس بې له الله وغواړم زه حکم کوونکی عادل (چې ځما او ستاسې په منځ کې فیصله وکړي)، حال دا چې دغه (الله) هغه (ذات دی) چې نازل کړی (رالېږلی) یې دی تاسې ته کتاب (قرآن) حال دا چې واضح کړی شوی دی (په کې حق او باطل)، او هغه کسان چې ورکړی

دی مونږ دوی ته کتاب پوهیږي دوی چي بېشکه دا (قرآن) نازل کړی (رالېږلی) شوی دی له (لوري د) رب ستا په حقه سره، نو مه کېږه (ای سامعه !) هیڅکله له شک کوونکو (په قرآن کې).
او تمامه شوې ده خبره د رب ستا له جهته د صدق (رښتینوالي) او له جهته د عدل (انصاف یعني کمال ته رسېدلی دی صدق د اخبارو او عدل د احکامو د ده)، نشته هیڅ بدلوونکی د خبرو د الله، او هم دی دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه خبردار (په ټولو احوالو).

تفسیر: یعني د «شیاطین الانس والجن» تلبیس او تلمیع ته یواځې جاهلان او بد عقیده ګان انسانان غوږ ږدي، یواځې رسولِ صلی الله علیه وسلم او د ده متابعت کوونکو چې په هره مسئله او معامله کې فقط یو الله جل جلاله خپل منصف او حَکَم منلی دی، آیا له دوی څخه د دې خبرې هیله (امید) کېدی شي چې دوی به الله تعالی پرېږدي، او د بل چا تر اثر لاندې به راشي؟، حال دا چې د پاک الله له لوري داسې معجز او کامل کتاب دوی ته نازل شوی دی؛ چې د ګردو (ټولو) اصولي شیانو ضروري توضیح او تفصیل په کې موجود دی، چې د هغه په نسبت د کتابیانو عالمان د پخوانیو کتابونو د بشاراتو په اساس معلومات لري، او ښه پرې پوهیږي چې په یقین سره دا پاک قرآن اسماني کتاب دی، نو د داسې محفوظ او مکمل قانون او لوی کتاب له موجودیت سره څرنګه یو صادق مسلمان د وسوسو او اوهامو یا محض عقلي قیاساتو او مغویانه مغالطاتو ښکار کېدی شي؟

﴿وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿١١٦﴾﴾

او که متابعت وکړې (ته) د زیاترو د هغو کسانو چې په ځمکه کې دي (له کفارو جهلاوو) نو وابه اړوي دوی تا (ای محمده !) له لارې د الله، او نه کوي پیروي دوی مګر د ګمان، او نه دي دوی مګر دروغ تړي (پر الله).

تفسیر: مشاهده او تاریخ دا راښیي چې په دنیا کې فهیم او محقق او با اصوله انسانان تل لږ وو، او اکثریت د همغو خلقو وو؛ چې تش د خیالي، بې اصولو، او چټي (فضول) خبرو پیروي به یې کوله، که ته د دغه اکثریت خبرو ته غوږ کېږدې، او پر بې اصولو خبرو باندې تګ شروع کړې، نو د الله تعالی د درښوولې سمې صافې لارې څخه په یقین سره بې لارې کېږې.

د دې خبرې مخاطبه اګر که له تاسې سره ده، خو في الحقیقت نورو ته آورول کیږي، د جاهلانو او عامو خلقو له دغو بې اصولو او چټي (فضولو) خبرو څخه یوه دا وه، چې هغو د ذبیحې پر مسئلې باندې تنقیدونه کول، او سره ویل به یې: «هغه ساکښ (حیوان) چې په خپل مرګ ومري، یعني مردار شي، دغه ته مسلمانان مردار وایي، حال دا چې هغه د پاک الله وژلی شوی ساکښ (ذي روح) دی، بالمقابل دوی هغه مذبوحه حلاله ګڼي؛ چې پخپله یې ذبحه کړې وي، نو دا عجیبه کار دی»، د دې خبرې ځواب په وروستنیو آیتونو کې ورکړی شوی دی، چې: ﴿فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾.

﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ مَن يَضِلُّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١١٧﴾ فَكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كُنتُم بِآيَاتِهِ مُؤْمِنِينَ ﴿١١٨﴾﴾

بېشکه رب ستا هم دی ښه عالم (دانا) دی په هغه چا چې ښویدلی دي له لارې د ده، او هم دی ښه عالم (دانا) دی په سمې لارې صافې موندونکو. نو وخورئ تاسې له هغه مذبوحې څخه چې یاد کړی شوی وي نوم د الله پر هغې باندې که یئ تاسې په آیتونو د الله ایمان لرونکي.

تفسیر: کله چې د دې واضحو او صحیحو دلائلو په بنا تاسې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نبوت او د قرآن کریم حقانیت تسلیم کړ، او په کلي ډول سره مو د هغه پر احکامو ایمان راوړ، نو اوس د هغه د فروعو او جزئیاتو د صحت تسلیمول هم ضروري دي، که د هر اصل او فرع او کلي او جزئي شیانو قبول څمونږ پر قیاس باندې موقوف وي؛ نو د وحیې او د نبوت ضرورت هیڅ نه پاتې کیږي.

وَمَا لَكُمْ أَلَّا تَأْكُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَقَدْ فَصَّلَ لَكُم مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ

او څه مانع دي تاسې ته چې نه خورئ تاسې له هغې مذبوحې څخه چې یاد کړی شوی دی نوم د الله پر هغې (په وخت د ذبحې کې) حال دا چې په تحقیق واضح کړي دي (الله) تاسې ته هغه چې حرام کړي دي پر تاسې (او دغه مذبوحه باسم الله له هغو څخه نه ده) مګر هغه محرمات چې اړ (محتاج) کړی شوئ تاسې (خوراک د) هغو ته (دهغی خوراک تاسو ته روا دی).

تفسیر: یعنې د اضطراري او مجبوري حالت په استثناء هغه شیان چې حرام دي، د هغو تفصیل (په ۶ جزء د المائده سورت په (۳) آیت اوله رکوع کې) تېر شوی دی، په هغو کې هغه ساکنبان (ذي روح) نه دي داخل؛ چې د پاک الله په نامه ذبح کړی شوي وي، نو بیا له هغه څخه نه خوړل په څه دلیل دي؟ او څه سند لري؟

وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ﴿١١٩﴾

او بېشکه ډېر له خلقو خامخا ګمراه کوي (خلق په تحلیل او تحریم) په نفسي خواهشاتو خپلو بې له پوهې (او تحقیقه او برهانه، له جهله)، بېشکه رب ستا هم دی ښه عالم (دانا) دی په تېرېدونکو (له شرعي حدودو څخه).

تفسیر: څمونږ د مسلمانانو عقیده دا ده چې هر شی بالواسطه یا بلا واسطه هم دا پاک الله یې پیدا کوي، او هم دا پاک الله یې وژني، بیا همغسې د ده د پیدا کړو شیانو څنې د ځینو شیونو خوړل مونږ ته مرغوب او مفید دي، لکه مڼه، انګور، انار، خرما، انځر، مڼه، سنتره، مالټه او نورو، او له ځینو شیانو څنې نفرت او کرکه کوو یا یې مضر ګڼو، لکه ناپاک او ګنده شیان او زهر اوسنکهیا او نور.

هم داسې د پاک الله وژلي شوي شیان هم پر دوه قسمونو دي: یو هغه چې سلیم فطرت ترې نفرت کوي، یا یې خوراک څمونږ بدني یا روحي روغتیا ته د الله تعالی په نزد مضر وي، مثلا هغه مړ حیوان (وینه لرونکی ساکنبن «ذي ورح») چې په خپل طبیعي مرګ (پخپل سر) مړ شي، او د ده وینه په غوښه کې جذبه شوي پاتې شي، بل هغه حلال او طیب ساکنبن (ذي روح) چې له شرعي اصولو سره سم د پاک الله په نامه ذبح شوی وي، نو دغه مذبوحه هم د الله تعالی وژل شوی حیوان او ساکنبن دی، چې یوه مسلمان د چړې په وسیله حلال کړی وي، مګر د ذبح د عمل او د پاک الله د نامه په برکت (او د هغې مذبوحې د تخصص په نوعیت سره) یې غوښه پاکه، صافه او سپېڅلې شوې ده، نو هر هغه سړی چې دغه دواړه قسمونه سره یو شی ګڼې، هغه معتدي (له حده تېرېدونکی) دی.

وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ﴿١٢٠﴾

او پرېږدئ تاسې ظاهره (ښکاره) ګناه او باطنه (پټه) ګناه (یعنې مطلق ګناه پرېږدئ !)، بېشکه هغه کسان چې کسب کوي د ګناه (ظاهراً یا باطناً) ژر به سزا ورکړه شي دوی ته په سبب د هغو ګناهونو چې وو دوی چې کسب کاوه به (یې).

تفسیر: «یعنې ښايي د کفارو په ښوولو او ښويولو باندې نه په ښکاره ډول سره عمل وکړئ، او نه پخپلو زړونو کې څه شک او شبهه پیدا کړئ.

لکه پخوا چې وليکل شو مشرکانو مرداره حلاله ګڼله، او ويل به يې چې: «ای مؤمنانو ! هغه حیوان چې پخپله مړ کيږي، د هغه وژونکی څوک دی؟» مؤمنانو به ويل چې: «الله تعالی»، نو مشرکانو به بيا ويل چې: «تعجب دی هغه شی چې انسانان ښکاري سپي، باز او بانبه او نور يې وژني هغه تاسې حلال ګڼئ ! او هغه چې الله تعالی يې وژني، هغه حرام بولئ ! دا ولې؟»، نو ددی جواب کې الله تعالی فرمائي:

وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ۗ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ ۖ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴿١٢١﴾

او مه خورئ تاسې له هغې (مردارې) چې نه وي ياد کړی شوی نوم د الله پر هغې باندې (عمداً) او بېشکه چې دا خوراک خامخا ګناه ده، او بېشکه شیطانان خامخا وسوسې اچوي دوستانو خپلو ته (چې کفّار دي) لپاره د دې چې جګړه وکړي دغه (کفّار) له تاسې سره (ای مسلمانانو !) او که اطاعت وکړئ تاسې د دوی نو بېشکه تاسې به (هم) خامخا مشرکان شئ.

تفسیر: «یعنې مه خورئ له هغه مړ حیوان څخه چې پرې نه وي ياد کړی شوی نوم د الله تعالی نه حقیقتاً او نه حکماً»، یعنې شرک يواځې هم دا نه دی چې د ما سوا الله عبادت وکړ شي؛ بلکه شرک په حکم کې دا هم دي: چې کوم شی په تحلیل او تحریم کې شرعي استناد پرېښود شي، او تش د خپلو آراوو، هوسونو او افکارو تابع شي، لکه چې د ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ په تفسير کې مرفوعاً منقول دي چې: «کتابيانو د الله تعالی وحي پرېښې وه، او يواځې د احبارو او رهبانو وينا يې د تحلیل او تحریم مدار او اساس ګرځولې وه».

لکه چې د بخاري او مختصر الزّبيدي شروح ځينې د هِرَقل د حديث په متعلق، او ځينې په کتاب التفسير کې ليکي؛ چې عدي بن حاتم وويل: «چې مونږ خو احبارو او رهبانانو ته عبادت نه دی کړی»، رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: «دا هم عبادت دی چې په تحلیل او تحریم کې يواځې د دوی متابعت وکړئ».

أَوَمَن كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ كَمَن مَّثَلُهُ فِي الظُّلُمَاتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ۚ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكَافِرِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٢﴾

آيا هر هغه څوک چې وي مړ (په کفر يا جهل) نو ژوندی کړو مونږ دی (په اسلام يا علم سره) او وګرځوو (ورکړو) مونږ ده ته نور (رڼا) چې تګ کوي دی په دې سره په خلقو کې؛ په شان د هغه چا دی چې حال د هغه (داسې وي چې واقع وي) په تيارو کې حال دا چې نه وي وتونکی له هغه (تورتم؟ بلکه نه دی، دارنګه حال د مؤمن او کافر دی)، همداسې (لکه چې ښايسته کړی شوی دی مؤمنانو ته ايمان) ښايسته کړی شوی دی کافرانو ته هغه شی چې دي دوی چې کوي (يې له کفر او معاصيو څخه).

تفسیر: ځينې مفسرين وايي چې دغه آيت د حمزه رضي الله تعالی عنه يا عمر رضي الله تعالی عنه يا د عمّار رضي الله تعالی عنه او ابو جهل په حق کې نازل شوی دی.

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكٰبِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا فِيهَا ۖ وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۲۳﴾

او (لکه چې مو ګرځولي دي فاسقان د مکې مشران) هم داسې ګرځولي دي مونږ په هره قريه (ښار) کې مشران فاسقان د هغې قريې، لپاره د دې چې مکرونه (او حيلې) وکړي دوی په هغو کليو (ښارونو) کې، او نه کوي مکرونه (او حيلې) دوی مګر خو له ځانونو خپلو سره حال دا چې نه پوهيږي دوی (چې ضرر يې دوی ته دی).

تفسير: يعنې داسې حيلې او پلمې (بهانې) يواځې د مکې معظمې رئيسانو له خپل ځانه نه دي جوړې کړي، بلکه د نورو کفارو مشرانو به تل همداسې پلمې (بهانې) او حيلې کولې، تر څو عوام الناس د رسولانو تابعدار نشي، ليکن د دوی دا پلمې (منصوبې) او حيلې بحمد الله پر پخو (خالصو) ايماندارانو له سره اثر نه کوي، او پلمې (منصوبې) او حيلې کوونکي خپل پای (انجام) او عاقبت پخپله خرابوي.

وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ ۘ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴿۱۲۴﴾

او کله چې به راغی دوی ته کوم آيت (وحي) نو ويل به دوی: له سره مونږ ايمان نه راوړو په (دغې وحي) تر هغه پورې چې راکړی شي مونږ ته په شان د هغو آيتونو چې ورکړی شوي وو (نورو) رسولانو د الله ته، الله ښه عالم (ښه پوه) دی په هغه ځای چېرې چې ږدي رسالت خپل (هلته)، ژر به ورسيږي هغو کسانو ته چې مجرمان دي (په کفر سره) ذلت (سپکوالی) په نزد د الله (په آخرت کې) او عذاب سخت په سبب د هغه چې وو دوی چې مکرونه به يې کول (له مؤمنانو سره).

تفسير: د دوی د مکارۍ، تکبّر، حيلو، او پلمو (منصوبو) لټولو يو مثال دا دی چې د انبياوو عليهم السلام د صدق کومه نمونه چې ګوري؛ نو وايي چې: مونږ په دغو دلائلو او علائمو باندې نه پوهيږو، مونږ هلته يقين کولی شو، چې په مونږ کومه پرښته راښکته شي، او د رسولانو په شان مونږ ته هم د الله تعالی پيغام راواوروي، يا دې پخپله پاک الله مونږ سره مخامخ شي:

﴿وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَائِكَةُ أَوْ نَرَىٰ رَبَّنَا ۗ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوا فِي أَنفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيرًا﴾ (۱۹ جزء د الفرقان سورت (۲۱) آيت (۳) رکوع).

خير دغه خبره خو الله تعالی ته ښه معلومه ده، چې څوک د دې وړ (لايق) او اهل دي، چې د رسالت په منصب مشرّف شي، او د الله تعالی د دې عظيم الشأن امانت حامل وګرځي؟ دا نه کوم کسبي شی دی، چې په دعا او رياضت يا په دنيوي جاه او دولت سره حاصل شي، او نه هر يو پاک او پليت سړی پر داسې يو جليل القدره او مهمه ذمه و اری باندې فائز او بريالی (کامياب) کېدی شي، هو ! داسې سپين سترګي متکبران، پلمه ګران (بهانه بازان)، حيله بازان او مکاران ښايي وپوهيږي او خبردار شي چې ژر به د دې معزّز منصب د طلب څواب دوی ته د سخت ذلّت او شديد عذاب په صورت ورکړی شي.

فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ۖ وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ۚ

پس هر هغه څوک چې اراده وفرمايي الله چې هدايت وکړي ده ته نو پراخوي سينه (زړه) د ده لپاره (د قبلولو) د اسلام، او هر هغه څوک چې اراده وفرمايي (الله) د ګمراه کولو د هغه (د

ایمان له لارې) ګرځوي (الله) سینه (زړه) د ده تنګ، نهایت تنګ ګواکې پورته درومي دی (په زحمت او زور سره) آسمان ته.

تفسیر: یعني په زور سره آسمانونو ته ختل غواړي، ولې نشي ختلی، ځکه زړه یې تنګیږي، (یعني د حق له قبوله داسې تښتي او لرې کیږي چې وایي آسمان ته ترې وختی، یا لکه چې د یوه سړي په مخکې یو ډېر لوړ او مشکل کار وي، چې ورته ګوري او توان یې ورته نه رسیږي، او زړه یې ورته تنګیږي، هم داسې ده ته هم اسلام سخت ښکاري).

كَذٰلِكَ يَجْعَلُ اللّٰهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۵﴾ وَهٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيْمًا ۭ قَدْ فَصَّلْنَا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۲۶﴾

هم داسې (چې تنګ کړي یې دي زړونه د کفارو له قبوله د حق) نازلوي الله عذاب پر هغو کسانو چې نـه راوړي ایمان. او همدا (اسلام) لاره د رب ستا ده سمه صافه، په تحقیق واضح بیان کړي دي مونږ آیتونه لپاره د (هغه) قوم چې پند ترې اخلي (پکې غور کوي).

تفسیر: هغه کسان چې د ایمان راوړلو اراده نه لري، ورباندې عذاب او تباهي راځي، چې ورو ورو د دوی سینې دومره تنګیږي، چې په هغو کې د حق د ننوتلو هیڅ ځای نه پاتې کیږي، بیا نو هم دغه سینه تنګي (ضیق الصدر) داسې عذاب دی، چې د قیامت په ورځ کې په محسوس ډول ور په مخه کیږي.

شیخ الهند د «رجس» ترجمه په عذاب سره کړې ده، چې دغه تقریر د هغه په اساس شوی دی.

او «عبد الرحمن بن زید بن أسلم» «رحمه الله» هم د «رجس» معنی په عذاب سره کړېده.

مګر ابن عبّاس رضي الله تعالی عنهما دلته له (رجس) څخه شیطان مرادوي، ښایي دا به له دې امله (وجې) وي، چې «رجس» پلیتي ته وایي، او له شیطان څخه ډېر پلیت او ناپاک بل څوک نشته.

په هر حال له دې تفسیره سره سم د آیت مطلب به داسې کیږي: هم دغسې چې پاک الله له ایمان څخه د وېریدونکو سینه تنګوي؛ هم داسې پر هغوی باندې د بې ایمانۍ له وجې شیطان هم مسلّط کاوه شي، چې له سره د «رجوع الی الحق» توفیق دوی ته نه پاتې کیږي.

لَهُمْ دَارُ السَّلٰمِ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَهُوَ وَلِيُّهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

شته دی دغو (پند آخیستونکو) ته دار (کور) د سلامتیا (جنت) په نزد د رب د دوی، او هم دغه «الله» ولي (مددګار) د دوی دی په سبب د هغو (اعمالو) چې وو دوی چې کول به یې.

تفسیر: یعني هر هغه څوک چې د اسلام او اطاعت په سمې صافې لارې درومي؛ هم دی به د سلامتیا کور ته ورسیږي، او پاک الله به د ده ولي، دوست او مددګار شي، دا خو د هغو کسانو حال شو چې د دوی ولي او دوست الله تعالی دی، یعني «أولیاء الرحمن» دي، وروسته له دې د «أولیاء الشیطان» بیان کولی شي.

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ۚ يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُمْ مِّنَ الْاِنْسِ ۚ

او (یاد کړه) هغه ورځ چې جمع به کړي (الله) دوی ټول، (او وبه ویل شي) ای جماعته د جنیاتو (د پیریانو) ! په تحقیق چې ډېر مو تابع کړي دي تاسې له انسانانو.

تفسیر: یعني ای شیاطین الجن ! تاسو ډېر بدبخت انسانان خپل لوري ته متوجه کړي دي، او په خپله لاره مو هغوی روان کړي دي.

وَقَالَ أَوْلِيَآؤُهُم مِّنَ الْإِنسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَبَلَغْنَآ أَجَلَنَا الَّذِىٓ أَجَّلْتَ لَنَا ۚ

او وبه وايي دوستان د دوی له انسانانو څنې: ای ربه څمونږ ! نفع اخيستې ده ځينو څمونږ په ځينو (نورو)، او رسيدلي يو مونږ نېټې خپلې ته هغه نېټه چې مقرره کړې وه تا مونږ ته (چې قيامت دی او مونږ ترې منکران وو، نو اوس به څمونږ څه حال وي؟).

**تفسير:** په دنيا کې هغه انسانان چې د بتانو او نورو عبادت کوي، دوی في الحقيقت د خبيثو پيريانو (شياطينو) عبادت کوي، او دغو به په دې ګمان د شياطينو عبادت کولو، چې دوی به څمونږ په کار او ښه راشي، نو څکه به يې د دوی په نامه نذرونه، نيازونه او خيراتونه ورکول، برسېره په دې د اهل جاهليت ډېرو کسانو د تشويش او اضطرابونو په وخت کې له پيريانو څنې هم استعانت غوښت، لکه چې د «الجن» په سورت کې ورته اشاره شوې ده.

او ابن کثير «رحمه الله» او نورو داسې روايتونه هم نقل کړي دي، چې کله د آخرت په ورځ کې دغه شياطين الجن أو شياطين الانس يو ځای سره ونيولی شي، او د ګردو (ټولو) حقائقو انکشاف وشي، نو هلته به مشرکان داسې عذر کوي، چې ای څمونږ ربه ! مونږ د دوی عبادت نه دی کړی، خو پخپلو منځونو کې مو سمدلاسه موقتي کارونه کول، او د مرګ د وعدې له راتللو څخه لا پخوا مونږ په دنيوي کارونو او خپلو چارو کې د پر مخ بيولو لپاره يو د بل کارونه چلول، او ځينې ترتيبونه مو سنجول (سمول)، د دوی عبادت او منل مو له سره مقصود نه وو.

قَالَ النَّارُ مَثْوَىٰكُمْ خَٰلِدِينَ فِيهَآ إِلَّا مَا شَآءَ اللَّهُ ۗ

او وبه فرمايي (دوی ته الله) چې: اور ځای ستاسې دی حال دا چې همېشه به اوسئ تاسې په دغه اور کې مګر (کله) چې اراده وفرمايي الله (د ايستلو د دوی زمهرير يا حميم يا بل کوم عذاب ته، يا اراده وفرمايي الله تعالی د ايستلو د ګناهګارو مؤمنانو له اور څخه جنت ته)،

**تفسير:** دا يې «کله چې اراده وفرمايي الله» د دې لپاره وفرمايه چې د دوزخ عذاب چې دائم دی، خو د هم ده په اراده سره دی، هر کله چې اراده وفرمايي د هغه پر موقوفولو هم قادر دی، ليکن پر هغه شي يې چې اراده کړېده، او د هغې خبر يې د رسولانو په ژبه ورکړی دی، هغه له سره تبديل کېدونکی نه دی. عموماً مفسرينو د دې آيت ترجمه داسې کړېده: «وبه فرمايي دوی ته الله چې اور ځای ستاسې دی چې همېشه به اوسئ تاسې په دغه اور کې مګر کله چې اراده وفرمايي الله د ايستلو د دوی زمهرير، يا حميم يا بل کوم عذاب ته، نو په دغه وخت کې به په اور کې نه وي»، چې همدغه ترجمه غوره ده.

إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿١٢٨﴾

بېشکه رب ستا ښه حکمت والا ښه عالم (ډېر خبردار) دی.

**تفسير:** يعنې د مجرمانو له جرائمو څنې په ښه ډول سره خبردار دی، او له خپل بالغه حکمت سره سم د هر جرم په ځای او تناسب سره سزا ورکوي.

وَكَذَٰلِكَ نُوَلِّى بَعْضَ الظَّٰلِمِينَ بَعْضًۢا بِمَا كَانُوا۟ يَكْسِبُونَ ﴿١٢٩﴾

او همداسې (چې په دنيا کې انسي او جنّي کفار مو يو په بل باندې مسلّط کړي دي؛ په عقبا کې) مسلّطوو مونږ ځينې ظالمان په ځينو (نورو) په سبب د هغو اعمالو چې وو دوی چې کول به يې.

تفسير: لکه چې تاسې د «شياطين الجن» او د دوی د انسي أولياوو حال واورېده، هم داسې مونږ ګرد ظالمان او ګناهګاران د دوی دظلمونو او بدو کارونو په تناسب به په دوزخ کې يو له بله سره نژدې کوو، او د هرې درجې ظالم او ګناهګار چې وي؛ دی به د نافرمانانو په همغه طبقه کې اچوو، بيا به وويل شي دوی ته داسې چې:

يٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ اَلَمْ يَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ يَقُصُّوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِيْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ

ای جماعته د جنياتو (پيريانو !) او انسانانو ! آيا نه وو راغلي (بلکه راغلي وو) تاسې ته رسولان له همدا تاسې نه چې بيانول به دوی پر تاسې آيتونه (احکام) زما او ويرولئ به يې تاسې له ملاقات د ورځې ستاسې څخه چې دا ده.

تفسير: دا تحقيق چې په هره نوعه کې بېل بېل رسول راشي، يا هر يو رسول د جن او انس ګردو افرادو لپاره مبعوث شوی دی، نو دا آيت له دې بيانه ساکت دی، د نورو نصوصو له مخې ګردو عالمانو دا ثابته کړې ده؛ چې نه د هر يوه رسول بعثت عمومي دی، او نه الله تعالی کوم يو جنّ د مستقل رسُول په حيث لېږلی دی، د معاش او معاد په اکثرو معاملو کې دوی حق تعالی د انسانانو تابع ګرځولي دي، لکه چې د «جن» د سورت آيتونه او احاديث او نور پرې دلالت کوي.

دا کومه ضابطه نه ده چې د مخلوق د هرې نوعې لپاره د همغې نوعې کوم سړی رسول ولېږل شي، باقي د انسانانو په لوري د پرښتو لېږل د رسالت په ډول (طريقه) د دې په نسبت هغه انکار چې د پاک قرآن په متعددو مواضعو کې شوی دی؛ د هغو اصلي منشأ همدا ده، چې عام انسان د پرښتو د ليدلو تحمل په خپل اصلي هيئت سره نشي کولی، او د بې اندازې خوف او هيبت له وجې نشي ترې مستفيد کېدی، او که د انسان په صورت راشي، نو بلا ضرورت التباس واقع کيږي، په همدې قياس سره که د پيريانو په قوم کې د نبوت منصب اهليت وای؛ نو دوی به دانسانانو لپاره له سره نه مبعوث کېدل، ځکه چې هلته به هم دغه اشکال وو.

قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰۤى اَنْفُسِنَا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَشَهِدُوْا عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ۝۱۳۰

نو وايي به چې شاهدي وايو پر (ګناهونو د) ځانونو خپلو (او په راتګ او تبليغ د رسولانو، نو وبه فرمايي الله چې) او غره کړي (او غولولي) دوی ژوندون لږ خسيس (دنيوي ژوندون)، او شاهدي ورکړه دوی پر ځانونو خپلو باندې چې بېشکه دوی وو کافران (په دنيا کې).

تفسير: په دې سورت کې پورته ذکر شو چې اول به کافران له خپله کفره انکار کوي، بيا به الله تعالی پخپل تدبير دوی قائلوي.

ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ۝۱۳۱ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ۝۱۳۲

دغه (ارسال د رُسل) لپاره د دې دی چې نه دی رب ستا هلاک کوونکی (د اهل د ښارونو او د) کليو په ظلم سره، حال دا چې اهل د دې (کليو او ښارونو) غافلان (بې خبران) وي، او هر چاته درجې دي (په ثواب او عقاب کې) له (جزاء د) هغو اعمالو چې کړي وي دوی، او نه دی رب ستا غافل (بې خبره) له هغو شيانو چې دوی (يې) کوي.

**تفسير:** يعنې د الله تعالى دا عادت نه دی چې بې له خبرولو او پوهولو څوک د ظلم او عصيان په ګناه باندې په دنيا يا آخرت کې ونيسي، او هلاک يې کړي، نو ځکه پيغمبران او ويرووونکي يې ولېږل، چې په ښکاره ډول ټولو جنياتو او انسانانو ته د دوی ښه او بد، ابتداء او انتهاء ورڅرګند او ګرد پرې خبردار کړي، بيا چې د چا عمل په کومه درجه او اندازه وي؛ الله تعالى به له هغه سره همغسې معامله وکړي.

وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ۚ إِن يَشَأْ يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِن بَعْدِكُم مَّا يَشَاءُ كَمَا أَنشَأَكُم مِّن ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ آخَرِينَ ﴿١٣٣﴾ إِنَّ مَا تُوعَدُونَ لَآتٍ ۖ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ﴿١٣٤﴾

او رب ستا غني (بې پروا) دی (له بندګانو او د دوی له عباداتو) څښتن (خاوند) د رحمت دی (د عذاب په ژر نه لېږلو)، که اراده وفرمايي نو بوځي به تاسې او خليفه (ځای نيوونکی ستاسې) به کړي وروسته له تاسې هر هغه څوک چې اراده وفرمايي، لکه چې پيدا کړي يې يئ تاسې له اولادې د قوم نورو نه. بېشکه هغه شی چې له تاسې سره يې وعده کولی شي (چې قيامت دی) ضرور راتلونکی دی، او نه يئ تاسې عاجز کوونکي (د الله تعالى په قدرت د ده کې).

**تفسير:** الله تعالى خپل حجّت پر تاسې د رسول په لېږلو تمام کړ، اوس که تاسې د الله تعالى احکام نه منئ، او په سمه صافه لاره نه درومئ؛ نو الله جل جلاله غني دی، او د تاسې او د نورو هيڅ پروا نه لري، که پاک الله اراده وکړي؛ نو تاسې ګرد به يوه شېبه (دقيقه) کې له منځه يوسي، او ستاسې په ځای به په خپل فضل او مرحمت سره بل قوم ودروي، چې د الله تعالى مطيع او وفادار وي، او دغه ستاسې بيول او د بل صالح قوم راوستل پاک الله ته هيڅ څه اشکال نه لري، دا چې نن تاسې د خپلو پلرونو او نيکونو په ځای ناست يئ، د پاک الله کار دی چې دوی يې عقبى ته بيولي او تاسې يې په دغه دنيا کې د دوی په ځای کښېنولي يئ، او ځای يې درکړی دی، په هر حال د الله تعالى کار بېرته پاتې کېدونکی او ستنېدونکی (واپس کېدونکی) نه دی، که ګرد مخلوقات هم لاس سره يو کړي، او ورته متفق شي؛ بيا هم دوی د الله جل جلاله د ارادې او مشيئت مخه نشي نيولی.

قُلْ يَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَامِلٌ ۖ فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن تَكُونُ لَهُ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۗ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿١٣٥﴾

ووايه چې ای قومه ځما ! عمل کوئ تاسې پر حالت خپل سره (چې کفر او عداوت دی) بېشکه زه هم عمل کوونکی يم (پخپل حال سره چې ايمان او استقامت دی)، پس ژر به پوه شئ تاسې چې دچا لپاره بـه وي (محمود) عاقبت د دار (د آخرت، باليقين)، شان دا دی: نه مومي بری ظالمان (کافران له عذابه د نيران).

**تفسير:** يعنې الله تعالى تاسې په خير او شر، نفع او ضرر، نېک او بد ګردو مطلع او خبر کړي يئ، که سره له هغه هم تاسې پرې ونه پوهيږئ، او پر خپلو ځانونو ظلم وکړئ، او له دې تيري او تجاوز څخه لاس وانخلئ؛ نو تاسې په دغه شرارت کې دوام وکړئ !، زه به هم خپله فريضه اداء کړم، او عنقريب به دا خبره ښکاره شي، چې د دې دنيا انجام د چا پـه لاس کـې دی؟ بې له شکه او شبهې د ظالمانو پای (آخر) او انجام ښه نه دی.

وروسته له دې د دوی د هغو څو اعتقادي او عملي ظلمونو بيان کاوه شي، چې په دوی کې رائج وو، او له ګردو څخه خورا لوی ظلم هغه دی، چې د هغه په نسبت يې فرمايلي دي: ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾.

وَجَعَلُوا لِلَّهِ مِمَّا ذَرَأَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْأَنْعَامِ نَصِيبًا فَقَالُوا هَٰذَا لِلَّهِ بِزَعْمِهِمْ وَهَٰذَا لِشُرَكَائِنَا ۖ فَمَا كَانَ لِشُرَكَائِهِمْ فَلَا يَصِلُ إِلَى اللَّهِ ۖ وَمَا كَانَ لِلَّهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلَىٰ شُرَكَائِهِمْ ۗ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿١٣٦﴾

او مقرر كړي دي دغو (مشركانو) الله ته له هغه شي چې پيدا كړي دي الله تعالى (هغه) له كښته (فصله) او چارپايانو څخه يوه برخه، نو وايي دوى دا برخه لپاره د الله تعالى ده په زعم (عقيده) د دوى سره، او دا (بله برخه) لپاره د شريكانو څمونږ ده، نو هغه برخه چې وي لپاره د شريكانو د دوى؛ پس (هغه) نه رسيږي الله ته، او هغه برخه چې وي لپاره د الله؛ نو هغه رسيږي شريكانو د دوى ته (چې بتان دي، ډېر) بد دى هغه حكم (انصاف) چې كوي يې دوى.

تفسير: شاه صاحب فرمايي چې: «كافرانو به له خپلو كښتو (فصلونو) او د چارپايانو له بچيانو څنې د الله تعالى په نامه نذرونه او نيازونه ايستل، او د بتانو په نامه به يې هم نيازونه او نذرونه ټاكل (مقررول)، نو بيا كله چې هغه ساكښ (ذي روح) چې د الله پاك په نامه ټاكلى (مقرر) شوى وو، څه قدر به يې بهتر ليدو؛ نو هغه به يې د بتانو له ساكښو (ذي روحو) سره بدلاوه، مګر د بتانو له لوري به يې د الله تعالى په لوري نه بدلاوه، او له هغو ډېر ويرېدل».

هم داسې په كښت (فصل) او كر، غَلو او دانو، مېوو او نورو شيانو كې هم كه د بتانو د نامه نذر اتفاقا د پاك الله برخې سره ګډ كېده؛ نو هغه به يې ترې بېلاوه، او د بتانو په لوري به يې ورستناوه، كه د الله پاك برخه به د بتانو په برخو كې ورتله؛ نو هغه به يې نه ستنوله او داسې پلمې (تدبيرونه) او بهانې به يې جوړولې چې الله تعالى خو غني دى، كه د هغه له برخې څخه څه كمه شي، هيڅ پروا نه لري، په خلاف د بتانو چې هغوى داسې نه دي.

د تماشې خبره دا وه چې دوى له داسې ويناوو څخه هم نه شرمېدل چې هغه بتان چې په دې اندازه محتاج وي؛ نو بيا دوى څرنګه معبود او مستعان دواړه شي؟ د داسې شيانو عبادت او احترام د كوم پوه او عقلمن كار دى؟.

په هر حال په دې آيت كې په ﴿سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ﴾ سره د مشركينو د دې تقسيم ترديد وكړ شو، يعنې د الله تعالى په پيدا كړى شوو كښتونو (فصلونو) او مواشيو او نورو كې اول د غير الله د برخې ټاكل (مقررول) او بيا د خرابو ناقصو شيانو نسبت پاك الله ته كول څومره ظلم؟ او بې انصافي ده؟ !.

وَكَذَٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ قَتْلَ أَوْلَادِهِمْ شُرَكَاؤُهُمْ لِيُرْدُوهُمْ وَلِيَلْبِسُوا عَلَيْهِمْ دِينَهُمْ ۖ

او (لكه چې مزيّن كړى شوى دى دوى ته دا د اموالو قسمت) هم داسې ښايسته كړى دى ډېرو مشركانو ته وژل د اولاد خپل شريكانو د دوى (چې شيطانان دي) لپاره د دې چې هلاك كړي دوى او (بل) لپاره د دې چې ګډوډ كړي (دا شيطانان) پر دوى باندې (ابراهيمي) دين د دوى.

تفسير: («شُرَكَاءُ» مرفوع او د «زَيَّنَ» فاعل دى): دلته د (شركاء) تفسير مجاهد «رحمه الله» په «شياطين» سره كړى دى، د مشركانو د انتهايي جهالت، ظلم او تيري يوه نمونه دا وه چې څينو د دوى به خپلې نجونې (جينكۍ) د څوم له شرمه، او د خسر ګرځېدلو له عيبه او څينو خپل نور حقيقي اولادونه د دې انديښنې له سببه چې له كومه او څه به وخوري؛ وژل، او كله به يې په خپلو ځانونو باندې داسې نذرونه منل، كه دومره اولاد ځما كره وشي، يا مې فلانى مراد پوره شي، نو خپل يو ولد به د فلاني بت په نامه ذبح كړم، او دغه ظلم او تېرى او بې رحمي به يې لوى عبادت او قربت ګڼه، لكه چې شياطينو هم دغه بد رسم دوى ته د الهي خليل د سنّت پشان ښايسته ورځرګند كړى وو.

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۷﴾

او كه اراده فرمايلې وى الله (په نه كولو د دې كار)؛ نو نه به وو كړى دوى دا كار، نو پر پرېږده دوى او هغه چې دروغ وايي دوى (پر الله باندې).

تنبيه: همداسې يو آيت په (۸ جزء د «الأنعام» د سورت په ۱۱۲ آيت (۱۴) ركوع) او په نورو ځايونو كې هم په همدې مضمون نور آيتونه شته، هر هغه شى چې د دغو متحد المضامينو آيتونو په تفاسيرو كې هلته ليكل شوى دى، هغه دې دلته بيا وكتل شي !.

وَقَالُوْا هٰذِهٖۤ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ۖ لَّا يَطْعَمُهَاۤ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

او وايي دوى چې (دغه برخه د بتانو كه) چارپايان دي او (كه) كښت (فصل) ممنوع (حرام) دى؛ چې نه به خوري له دې مګر هغه څوك چې څمونږ خوښ وي په ګمان د دوى سره سم، او (ځينې) چارپايان دي چې نه يادوي دغه (مشركان په وخت د ذبح كې) نوم د الله پر دوى بلكه (نوم د بتانو پرې يادوي او نسبت كوي د دغو احكامو الله ته) په طريقه د دروغ تړلو په الله، ژر به سزا وركړي دوى ته (الله)، په سبب د دې چې وو دوى دروغ به يې تړل (پر الله).

تفسير: مثلا چې نارينه يې وخوري او ښځې يې ونه خوري، يا دې نذراني يواځې همغه كسان وخوري؛ چې د بتخانو مجاوران وي، دا قيود يې يواځې په خپلو خيالونو سره د ځينو چارپايانو او كښتونو (فصلونو) په متعلق وضع كړي وو، چې د بتانو په نامه به يې وقفول، همداسې يې سورلى او بار وړل هم د ځينو ساكښانو (چارپايانو) په شا حرام ګڼل، د ځينو مواشيو په نسبت يې داسې فيصله كړې وه، چې د ذبحې يا د سورلى يا لوشلو په وخت كې پر هغوى د الله تعالى نوم وانخيستل شي، او هيڅېږې د بتانو په شيونو كې الله تعالى شريک نشي.

برسېره په دې؛ لوى غضب دا وو چې د هسې خرافاتو او جهالتونو نسبت يې د الله تعالى په لوري كاوه، ګواكې (معاذ الله) همده داسې احكام صادر فرمايلي دي، او په هم دغو طريقو سره د ده خوښي او خوشالي حاصلېدى شي، له داسې بدو عناوينو سره يې داسې بهتان او افتراء هم كوله، ژر به دوى د داسې ګستاخۍ او سپين سترګى له سزاوو سره مخامخ شي.

وَقَالُوْا مَا فِيْ بُطُوْنِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُوْرِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰۤى اَزْوَاجِنَا ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مَّيْتَةً فَهُمْ فِيْهِ شُرَكَآءُ ؕ سَيَجْزِيْهِمْ وَصْفَهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۳۹﴾

او وايي دوى چې هغه شى چې په ګېډو د دې چارپايانو كې دى؛ خالص دى لپاره د نارينه وو څمونږ، او حرام كړى شوى دى پر ښځو څمونږ، او كه وي هغه؛ مرداره نو دوى (نر او ښځه) په كې شريكان دي، ژر به سزا وركړي (الله) دوى ته د (دې) تقرير د دوى، بېشكه دغه (الله) ښه حكمت والا دى (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي) ښه علم والا (په هر شي دانا).

تفسير: يوه داسې مسئله يې هم له ځانه جوړه كړې وه، كه بحيره او سائبه يې ذبح كړه، او د هغو له ګېډو څخه كوم ژوندى بچى ووت، نو د هغه له غوښې څخه دې نارينه وخوري !او ښځې دې نه خوري، او كه مړ ووت؛ ټول يې تړې خوړى شي، د داسې بې سندې مسئلې د جوړوونكو له حاله پاک الله بې خبره نه دى، هو ! دى به له خپل حكمت سره

سم په مناسب وخت کې هغو ته مناسبه سزا ور کوي، (او بېشکه الله څېښتن (خاوند) د حکمت دی، په حکم د حلالو او حرامو بلکه په هر شي کې، او ښه دانا دی په مصالحو د بندګانو خپلو په حل او په حرمت او نورو کې).

قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ قَتَلُوٓا۟ أَوْلَـٰدَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَحَرَّمُوا۟ مَا رَزَقَهُمُ ٱللَّهُ ٱفْتِرَآءً عَلَى ٱللَّهِ ۚ قَدْ ضَلُّوا۟ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴿١٤٠﴾

بېشکه زیان کړی دی هغو کسانو چې وژلي يې دي اولاد خپل له جهته د بې عقلی بې له پوهې، او حرام کړي يې دي هغه شيونه چې رزق (روزي) ور کړی دي دوی ته الله، له جهته د دروغ تړلو پر الله پورې، بېشکه ګمراهان شوي دي دوی، او نه دي دوی لاره موندونکي (حق ته).

وَهُوَ ٱلَّذِىٓ أَنشَأَ جَنَّـٰتٍ مَّعْرُوشَـٰتٍ وَغَيْرَ مَعْرُوشَـٰتٍ وَٱلنَّخْلَ وَٱلزَّرْعَ مُخْتَلِفًا أُكُلُهُۥ وَٱلزَّيْتُونَ وَٱلرُّمَّانَ مُتَشَـٰبِهًا وَغَيْرَ مُتَشَـٰبِهٍ ۚ كُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦٓ إِذَآ أَثْمَرَ وَءَاتُوا۟ حَقَّهُۥ يَوْمَ حَصَادِهِۦ ۖ وَلَا تُسْرِفُوٓا۟ ۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿١٤١﴾

او الله هغه ذات دی چې پیدا کړي يې دي باغونه (د انګورو له ځمکې) هسک (اوچت) کړی شوي (پر لرګيو)، او غير هسک (اوچت) کړی شوي (پراته پر ځمکه)، او د خرما ونه او کښت (فصل) چې مختلفي وي مېوې (حاصل) د هغو (په رنګ او خوند کې) او زيتون (ښونه) او انار (نرګوسی) چې متشابه وي (په ونو او پاڼو کې) او غير متشابه وي (مېوې د هغو په مزو کې)، خورئ تاسې له مېوې د هغې ځنې کله چې مېوه ونیسي، او اداء کړئ حق د هغې په ورځ د رېبلو (شوکولو) د دې، او بې ځايه يې مه مصرفوئ تاسې، بېشکه چې الله نه خوښوي مسرفان (تېرېدونکي له حدودو).

تفسير: هسک (اوچت) کړی شوي لکه انګور چې پر چيلو او نورو هسکيږي (اوچتيږي)، او غير هسک (اوچت) کړی شوي (چې پخپله هسک (اوچت) وي) لکه خُرما، منه، بادام او پسته او نورې دِه (تنه) لرونکي ونې، يا (غوړېدلې په ځمکه لکه) خټکي، هندوانې، او نور چې د هغو ځيلی (جوړنګ) بې د بل کوم شي له اتکاء د ځمکې پر مخ غځيږي او خوريږي.

﴿أُكُلُهُۥ﴾ «اُكُل: مېوه، دانو او نورو هغو شيانو ته وايي چې خوړل کيږي»، ﴿مُتَشَـٰبِهًا﴾ يعنې په صورت او شکل کې يو له بل سره مشابه او ورته وي، خو په خوند او مزه کې سره بېل او جلا (جدا) وي.

﴿كُلُوا۟ مِن ثَمَرِهِۦٓ﴾ «خورئ له مېوې د هغې»، يعنې هغه غلې چې الله تعالی پيدا کړي دي، د هغوی له خوړلو څخه بې له کومه سنده ځان مه ساتئ !، هو ! د دې دوه خبرو فکر او خيال تل ولرئ، چې د رېبلو او ټولولو په وخت کې هغه حق چې د الله تعالی دی؛ هغه ور کړئ، او نور فضول او بې موقع صرفول او ښندل (نوستل) مه کوئ !.

د الله تعالی له حق څخه دلته مراد څه شی دي؟ د دې په نسبت عالمان مختلفې خبرې کوي، د ابن کثير «رحمه الله» له روايت ځنې دا څرګنديږي، چې ابتداء په مکې معظمې کې د کښتونو (فصلونو) او باغونو په حاصلاتو کې څه برخه ايستل واجب وو، چې په مساکينو او فقراوو صرفېدله، وروسته په مدينې منورې کې د هجرت په دويم کال د هغه مقدار او د نورو تعيين او تفصيل وکړ شو، يعنې د للمې ځمکې په حاصلاتو (په دې شرط چې خراجي نه وي) لسمه برخه، او د اوبو لرونکو ځمکو ځنې شلمه برخه واجب ده.

وَمِنَ الْأَنْعَامِ حَمُولَةً وَّفَرْشًا كُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ إِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿۱۴۲﴾

او (پیدا کړي مو دي) له چارپایانو بار وړونکي او غځېدونکي (په ځمکه)، خورئ تاسې له هغو چې رزق کړی (در کړی دی) تاسې ته الله، او مه کوئ متابعت (مه ځئ) تاسې په قدمو د شیطان، بېشکه دا (شیطان) تاسې ته دښمن دی ښکاره.

تفسیر: بار وړونکي لکه اوښ او نور، او په ځمکه غځیدونکي لکه کوچنوتي (واړه) ساکښان (ذي روح) مېږي، وزې (یا د «فرش» معنی دا ده چې د وړیو او وژغنو او وېښتانو څخه یې فرشونه جوړیږي)، یا لپاره د حلالولو پر ځمکه څملول کیږي، یا «حمولة» د انعامو کبار دي، او «فرش» د دوی صغار دي، ځکه چې ځمکې ته فرش په شان نژدې دي).

د الله تعالی له دې راکړو نعمتونو څخه منتفع کېدل، بهره اخیستل پکار دي، د شیطان پر قدمونو تګ دا دی، چې دغه شیان هرو مرو بې له شرعي حجّته حرام وګرځول شي، یا د شرک او بت پرستۍ وسیله یې جوړه کړي، له دې نه په بله د شیطان ښکاره دښمني څه وي، چې له دې نعمتونو څخه یې تاسې په دنیا کې بې برخې ګرځولي یئ؟، او په آخرت کې د هغو له امله (وجې) په سخت عذاب اخته کېږئ.

ثَمٰنِيَةَ أَزْوٰجٍ مِنَ الضَّأْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ نَبِّئُونِي بِعِلْمٍ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِينَ ﴿۱۴۳﴾

(الله پیدا کړي دي حلال) اته جوړې (نر او ښځه)، له مېږو (ګډو) څخني دوه (نر او ښځه) (یعني په هره نوعه کې یوه ښځه او بل نر، په دې ډول دوه دوه جوړه شول، چې ګرد سره اته کیږي)، او له وزو (بیزو) څخه دوه (نر او ښځه)، ووایه (ای محمده! دوی ته): چې آیا (الله) دواړه نران حرام کړي دي (د مېږو «ګډو» او وزو «بیزو» څخه) که دواړه ښځې (له دوی څخه)؟ یا (که حرام کړي یې دي) هغه بچي چې مشتمل وي په هغو باندې رحمونه د دغو دواړو ښځو؟ راوښیئ تاسې ماته سند (چې علم دی)، که یئ تاسې صادقان (رښتیني په نسبت د تحریم د دې شیونو کې الله ته)!.

تفسیر: یعنې د کوم یوه شي حلال او حرام ګڼل یواځې د الله تعالی په حکم سره کېدی شي، بیا په دوی کې نر یا ښځه یا د هغه بچي چې د مور په ګېډه کې دی که تاسې د ګردو انسانانو یا د ځینو په حق کې حرام وګرځوئ لکه چې په پخوانیو آیتونو کې تېر شو، آیا له تاسې سره د دې خبرې کوم سند شته؟

کله چې له تاسې سره د الله تعالی کوم حکم او سند نشته، نو بیا تش په آراوو او نفسي تمایلاتو سره د الله تعالی په پیدا کړو شیانو کې له خپله ځانه حلال او حرام ټاکل (مقررول) له دې خبرې سره مرادف دي؛ چې د الوهیت مقام د خپل ځان لپاره تعیین کړئ، یا په الله تعالی باندې عمداً او په قصد سره بهتان یا افتراء ووایئ، دا دواړه صورتونه ډېر مهلک او تباه کوونکي دي.

وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ قُلْ ءٰٓالذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنْثَيَيْنِ أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصّٰكُمُ اللّٰهُ بِهٰذَا فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ ﴿۱۴۴﴾

او (الله پیدا کړي دي) له اوښانو دوه (نر او ښځه) او له غوایانو دوه (نر او ښځه)، ووایه (ای محمده! دوی ته) چې آیا دواړه نران حرام کړي دي الله که دواړه ښځې یا هغه (بچي یې حرام

کړي دي) چې مشتمل دي پرې رحمونه د دغو دواړو ښځو، آيا وئ تاسې حاضران (ليدونکي) کله چې وصيت (حکم) کاوه تاسې ته الله په دې شيانو، نو څوک دی ډېر ظالم (يعنې نشته لوی ظالم) له هغه چا چې تړي پر الله باندې دروغ لپاره د دې چې ګمراه کړي خلق بې له علمه (بې تحقيقه)، بېشکه الله نه کوي هدايت قوم ظالمانو ته (چې د جاهليت په دين ولاړ وي).

تفسير: د اشياوو تحليل او تحريم يواځې د الله تعالى په حکم سره کېدی شي، او د الله تعالى حکم د انبياوو عليهم السلام په وسيله رارسيږي، يا حق تعالى بلا واسطه څوک مخاطب وګرځوي، نو له دې نه معلومه شوه، چې دلته دواړه صورتونه منفي دي، د پخواني شقّ انتفاء ته يې په ﴿نَبِّـُٔونِى بِعِلْمٍ﴾ الآيه ـ سره او د دويم شقّ نفي ته يې په ﴿أَمْ كُنتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ وَصَّىٰكُمُ﴾ الآيه ـ سره تنبيه وفرمايله، نو د مشرکانو په دغو دعواوو کې د افتراء او اضلال څخه ما سوا بل هيڅ شی پاتې نشو.

قُل لَّآ أَجِدُ فِى مَآ أُوحِىَ إِلَىَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ يَطْعَمُهُۥٓ إِلَّآ أَن يَكُونَ مَيْتَةً أَوْ دَمًا مَّسْفُوحًا أَوْ لَحْمَ خِنزِيرٍ فَإِنَّهُۥ رِجْسٌ أَوْ فِسْقًا أُهِلَّ لِغَيْرِ ٱللَّهِ بِهِۦ ۚ فَمَنِ ٱضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ رَبَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٤٥﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې نه مومم زه په هغه شي کې چې وحي کړی شوې ده ماته (تر اوسه پورې) (يو شی) حرام کړی شوی پر کوم خوړونکي چې خوري هغه، مګر که وي دا شی مرداره يا وينه بهېدونکې يا غوښه د خنزير؛ نو بېشکه دغه خنزير پليت دی، يا ناجائزه ذبيحه وي چې غږ کړی شوی وي بې د نامه د الله په (وخت د ذبح د) هغې کې، بيا که څوک (له لوږې) بې اختياره شي، په دغه حال چې نه وي ظالم (پر بل کوم مضطر باندې)، او نه تېرېدونکی (په خوراک کې د ضرورت له قدره)؛ نو بېشکه رب ستا لوی بخښونکی (د خطيّاتو) نهايت مهربان دی.

تفسير: شاه صاحب فرمايي: «يعنې له هغو ساکښانو (ذي روحو) څخه چې د غوښو خوراک يې رواج درلود (لرلو)، هم دا حرام دي»، په دې آيت کې کفارو ته دا خبره ښوولې کيږي، دغه شيان چې پاس ذکر شول ګرد حلال وو، خو تاسې هغه په خپل سر حرام وګرځول، اوس هغه شيان درښوول کيږي؛ چې حقيقتاً حرام دي، او تاسې هغه حلال ګڼئ.

باقي د آيت مضمون تفسير او توضيح په (۲ جزء د البقره سورت په (۱۷۳) آيت (۲۱) رکوع، او په (۶) جزء د «المائدې» د سورت په (۳) آيت (۱) رکوع د ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ ٱلْمَيْتَةُ وَٱلدَّمُ وَلَحْمُ ٱلْخِنزِيرِ﴾ الآيه ـ په تفاسيرو کې ليکلی شوی دی، هلته دې وکتل شي.

وَعَلَى ٱلَّذِينَ هَادُوا۟ حَرَّمْنَا كُلَّ ذِى ظُفُرٍ ۖ وَمِنَ ٱلْبَقَرِ وَٱلْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَآ إِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُورُهُمَآ أَوِ ٱلْحَوَايَآ أَوْ مَا ٱخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ۚ ذَٰلِكَ جَزَيْنَٰهُم بِبَغْيِهِمْ ۖ وَإِنَّا لَصَٰدِقُونَ ﴿١٤٦﴾

او پر هغو کسانو باندې چې يهودان دي؛ حرام کړی وو مونږ هر نوکداره، او له غوايانو او له مېږو (ګډو) حرام کړی وو مونږ پر دوی باندې وازدې د دې دواړو، مګر هغه وازده چې بار کړې وه (لګېدلې وه په) شاګانو د دوی دواړو يا کلمو باندې به وه، يا هغه وازده چې لګېدلې به وه له هډوکي سره، دا (تحريم د دې شيونو) جزا ورکړې وه مونږ دوی ته (په هغه سره) په سبب د ظلم (شرارت) د دوی، او بېشکه مونږ خامخا رښتيا ويونکي يو (په دې ويلو خپلو کې).

تفسير: يعني اصلي حُرمت خو په هم دغو شيانو کې شته چې پاس ذکر شول، هو ! د موقّتي مصالحو له امله (وجې) ځينې شيان په عارضي ډول سره پر ځينو اقوامو پخوا له دې نه حرام کړی شوي وو، مثلا پر يهودانو باندې د دوی د شرارتونو د سزا له امله هر نوک لرونکی حيوان چې نوکان يې له منځه نه وي جلا (جدا) شوي، لکه اوبن، شتر مرغ، مرغاوۍ او نور حرام کړی شوي وو، او هم د غوايي او وزې (بيزې) هغه وازده چې پر شا يا کلمو يې لګېدلې نه وي، يا له هډوکي سره متصله نه وي؛ پر دوی باندې حرامه کړی شوې وه، لکه د پښتورګي وازده.

د بني اسرائيلو دغه دعوی غلطه ده؛ چې دغه شيان د نوح او ابراهيم عليهما السلام له زماني راهيسي په مستمر ډول سره پرله پسې حرام پاتې دي، رښتيا خبره دا ده چې له دغو شيانو ځني هيڅ يو شی د ابراهيم عليه السلام په عهد کې نه وو حرام، او د يهودانو د نافرماني او شرارتونو له امله دا ګرد شيان حرام شول، نو هر هغه څوک چې د دې په خلاف دعوی کوي؛ دروغ وايي، لکه چې د (۴ جزء په شروع د آل عمران سورت په (۹۳) آيت (۱۰) رکوع په: ﴿قُلْ فَأْتُوا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنتُمْ صٰدِقِينَ﴾ دغو دعوی کوونکو ته دعوت ورکړی شوی دی، چې د دې خبرې اثبات را څرګند کړي !.

فَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٤٧﴾

نو که نسبت د دروغو وکړ دوی تاته (په دغې وحيې کې) نو ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې رب ستاسې څښتن (مالک) د رحمت واسع (ډېر پراخ) دی (چې تلوار نه کوي په تعذيب ستاسې)، او نه ګرځول کيږی عذاب د الله له قومه ګناهګارانو (کافرانو نو مه مغروريږئ په دې امهال).

تفسير: تاسې ته تر اوسه پورې د الهي رحمت د پراخی له کبله (وجې) نجات موندلی دی، نو داسې مه ګڼئ چې عذاب له تاسې ځني لرې شوی دی.

سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِن شَيْءٍ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ حَتَّىٰ ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِندَكُم مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِن تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ﴿١٤٨﴾ قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿١٤٩﴾

ژر به ووايي هغه کسان چې شرک يې کړی دی: که اراده فرمايلي وی الله (په طريقه د رضا سره د دوی د شرک په عدم) نو شرک به نه وو غوره کړی مونږ او نه پلرونو ځمونږ او نه به حرام کړي وو مونږ هيڅ شی، لکه همدغه (مکذّبان) نسبت د دروغو کړی وو هغو کسانو چې پخوا له دوی ځني وو تر هغه پورې چې وڅاکه دوی عذاب ځمونږ، ووايه (ای محمده ! دوی ته): آيا شته تاسې سره څه علمي سند چې راوباسئ تاسې هغه مونږ ته، پيروي نه کوئ تاسې (د هيڅ شي) ! مګر د تش ګمان (اټکل خپل، نه له علمه)، او نه يئ تاسې مګر خو دروغ وايئ (په الله). ووايه (ای محمده ! دوی ته: که نه وي تاسې سره څه دليل) نو الله لره دی دليل کامل (لپاره د الزام ستاسې) نو که اراده فرمايلي وی (الله د هدايت ستاسې نو) خامخا هدايت به يې فرمايلی وو تاسې ټولو ته.

تفسير: يعني که الله اراده کړې وی، نو هغه پاک ذات قدرت درلود (لرلو) چې مونږ او ځمونږ اسلاف يې نه يوائې له دغه تحريم بلکه له نورو مشرکانه افعالو او اقوالو ځني هم ژغورلي (ساتلي) وی، کله چې يې نه يو ژغورلي، او مونږ همغسې پرې پاتې او دوام لرو، نو ثابته شوه چې د هغه په دربار کې ځمونږ دا ګردې چارې مقبولې او ښايسته دي،

او که ځمونږ دغه کارونه (چې له قدیمه راهیسې یې کوو) د ده په نزد خراب او نا مناسب وی؛ نو مونږ یې ولې داسې خوشې او آزاد او په خپل سر یې پرېښي یو؟.

دغه خبره د پوهېدلو وړ (قابل) ده چې «أحکم الحاکمین» جل جلاله د دنیا د پیدایښت له اوله تر نن پورې د خپلو صادقو او پاکو رسولانو علیهم السلام په واسطه له هر قسم قوانینو او احکامو ځنې خپلو بندګانو ته اطلاع ورکوي، او په ښکاره او صاف ډول دوی ته دا ورښیي، چې کوم اعمال د ده په دربار کې غوره او کوم یې ناغوره دي؟.

کله پرله پسې او کله له لږو وقفو ځخه وروسته د دغو احکامو او هدایاتو یادونه او تذکر هم کیږي، په دې منځ کې تر هغې اندازې پورې چې له مخالفت کوونکو سره مسامحت وړ (لایق) وو؛ ورسره مسامحت وشو، کله چې د معمولي تنبیهاتو ضرورت پېښ شوی دی، نو ګړی په ګړي هغه هم ورکړی شوي دي.

او هغو کسانو ته یې لږ څه مهلت او ډیل هم ورکړی دی؛ چې د دوی د شقاوت او بدبختۍ جامونه تر څنډو (غاړو) ډک شوي وو، او په صاف او ښکاره ډول سره د خپل الله جل جلاله د انتهایي سزا مستحق ګرځیدلي او په خپله سزا او هیداد باندې د رسېدلو وړ (مستحق) او لایق ګڼلی شوي وو، لکه چې ډېرو قومونو د خپلو جرائمو د لږ څه هیداد او سزا خوند په هم دې دنیا کې څکلی دی.

نو بیا د دغسې حالاتو له موجودیت سره د څو ورځو له مخې د کوم قوم په کومو جرائمو کې د سزا له نه مبتلا کېدلو او سمدلاسه د دوی په عذاب له نه اخته کېدلو څخه څرنګه دغسې استدلال کېدی شي؛ چې ګواکې (معاذ الله) هغه جرائم د الله تعالی په نزد غوره دي، که نه الله تعالی به د یوې ګړۍ له مخې هم ورته مهلت نه ورکاوه.

بېشکه که د الله تعالی اراده وی؛ نو د انسان خلقت به یې داسې کاوه چې ګرد به سره د نوې لارې پر تللو مجبور وو، لیکن کله چې داسې نه ده واقع شوې، نو هم دغه بالغه حجّت او پوره الزام پر هغو کسانو دی چې ﴿لَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشۡرَكۡنَا﴾ الآیه ـ په ویلو سره په الهي مشیئت او رضا کې د تلازم اثبات کوي.

د مشرکانو دغه استدلال ﴿لَوۡ شَآءَ ٱللَّهُ مَآ أَشۡرَكۡنَا﴾ الآیه ـ خوشې لغو او چټې (ببکاره) او فضول دی، او هیڅ یو داسې برهان او علمي اصول له هغوی سره نشته چې هغه د عاقلانو په مخ کې وړاندې کړی شي، او یواځې اټکلي غشي او تخمیني خبرې دي، چې د الله تعالی بالغه حجّت پرې تردیدوي، چې د هغه په لوري په ﴿فَلَوۡ شَآءَ لَهَدَىٰكُمۡ أَجۡمَعِينَ﴾ کې اشاره فرمایلې ده، یعنې انساني فطرت داسې نه دی پیدا کړی شوی؛ چې ګرد سره سم د هدایت په لاره برابر شي، دوی ته پاک الله د کسب او اختیار هغه آزادي وړ په برخه فرمایلې ده، چې د هغې اعطاء بل هیڅ یوه مخلوق ته ممکنه نه وه، نو ځکه لازم دي چې د دې آزادۍ د استعمال په وخت کې لارې مختلفې وي، ځوک په نېکۍ پسې منډې وهي، او ځوک د بدۍ په لوري وځغلي.

قُلۡ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ ٱلَّذِينَ يَشۡهَدُونَ أَنَّ ٱللَّهَ حَرَّمَ هَٰذَاۖ فَإِن شَهِدُواْ فَلَا تَشۡهَدۡ مَعَهُمۡۚ وَلَا تَتَّبِعۡ أَهۡوَآءَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِ وَهُم بِرَبِّهِمۡ يَعۡدِلُونَ ۝١٥٠

ووایه (ای محمده ! دوی ته) راولئ شاهدان خپل هغه چې شاهدي ورکوي دوی (په دې) چې بېشکه الله حرام کړي دي دا شیونه، نو که شاهدي ورکړه دوی؛ نو ته شاهدي مه وایه له دوی سره (مه یې قبلوه، اعتبار پرې مه کوه !)، او مه کوه متابعت د آرزوګانو (خواهشونو) د هغو کسانو چې نسبت د دروغو کوي آیتونو (احکامو) ځمونږ ته، او د هغو کسانو چې نه راوړي ایمان په آخرت باندې، حال دا چې دوی له ربه خپله سره برابروي (نور شیان په عبادت کې).

﴿قُلْ تَعَالَوْا أَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ أَلَّا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ مِنْ إِمْلَاقٍ نَحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې راشئ ! چې زه لولم (در اوروم) هغه چې حرام کړي دي رب ستاسې پر تاسي باندې، چې شریکان مه نیسئ تاسې له دغه (الله) سره هیڅ شی، او (نیکي کوئ تاسې) له مور او پلار سره په نېکۍ کولو سره، او مه وژنئ تاسې اولاد خپل له (وېرې د فقر او خوارۍ نه، مونږ رزق (روزي) درکوو تاسې ته او هم دوی ته.

تفسیر: عربیانو به د مفلسی لامله (وجې) ځینې وختونه خپل اولادونه وژل، او ویل به یې چې: مونږ پخپله خواړه نه مومو؛ نو خپلو اولادونو ته له کومه خوراک ور برابر کړو، او ورباندې ویې خورو؟، نو ځکه فرمایي: رزق ورکوونکی خو پاک الله دی، چې تاسې او هم ستاسې اولادې او هم نورو مخلوقاتو ته یې ورکوي.

په بل ځای کې د ﴿إِمْلَاقٍ﴾ پر ځای ﴿خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ﴾ فرمایلي دي، یعنې د مفلسی له وېرې به یې هغوی وژل، دا به د هغو کسانو ذکر وي؛ چې اوس مفلسان نه دي، مګر ویرېږي کله چې مو آل او عیال زیات شي، نو دوی ته به مونږ خوراک له کومه پیدا کوو؟.

څرنګه چې پخوانی طبقې ته پخوا له عیاله د خپل ځان د دوړې فکر او سخته اندېښنه پیدا شوې وه، او دویمه طبقه د عیال د پروالي پرېشانه کړې وه، ښایي له همدې کبله (وجې) یې دلته له ﴿مِنْ إِمْلَاقٍ﴾ سره ﴿نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ﴾ او په هغه آیت کې یې له ﴿خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ﴾ سره ﴿نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ﴾ ارشاد فرمایلی وي، والله أعلم.

تنبیه: په قرآنکریم کې درې ځایه په توحید پسې د والدینو احسان متصل راغلی دی، له دې جهته لکه چې پروردګار حقیقتاً د مولود خالق او موجد دی، هم داسې مجازاً مور او پلار هم د ولد حامي، مربي او روزونکي دي، نو ځکه د خالق جل وعلا شأنُه د توحید او عبادت څخه وروسته په مخلوقاتو کې له ګردو نه پخوا او زیات د مور او پلار حقوق او خدمت دی.

﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾

او مه نژدې کېږئ، فواحشو (بې حیایی، ناکارو کارونو) ته هغه چې ښکاره وي له دې (فواحشو) او هغه چې پټ وي.

تفسیر: له «مه نژدې کېږئ» څخه ښایي دا مراد وي، چې د داسې کارونو له مبادیو او وسائلو څخنې هم ځان ژغورل (بچ کول) په کار دي، مثلا همغسې چې له زنا څخه مو ځانونه ژغورئ (پچ ساتئ)؛ له بدو کتلو، بد لیدلو، بد ویلو، او بد کولو څخنې هم اجتناب او پرهېز پکار دی.

﴿وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾

او مه وژنئ تاسې نفس هغه نفس چې حرام کړي دي الله (وژل یې) مګر (وژنئ یې) په حقه سره.

تفسیر: د ﴿إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ استثناء ضروري وه، ځکه چې د «قاتل العمد» او «زاني محصن» او «مرتد عن الاسلام» وژل په کې داخل دي، لکه چې په صحیحو احادیثو کې د هغو تصریح وارده شوې ده، او مجتهدینو ائمه وو هم پرې اجماع فرمایلې ده.

ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٥١﴾

دا (ځلور نهي او امر) حکم کړی دی الله تعالی تاسې ته په دې سره، لپاره د دې چې عقل وچلوئ (په کې) تاسې.

تفسیر: له دې آیت څخه د دې ګردو (ټولو) شیانو حرمت ثابت شو: (۱) شرک بالله. (۲) له مور او پلار سره بد سلوکي. (۳) قتل الأولاد. (۴) د بې حیایې ګرد کارونه مثلاً زنا او نور. (۵) د بل چا په ناحقه وژل.

وَلَا تَقْرَبُوا۟ مَالَ ٱلْيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُۥ ۖ

او مه نژدې کېږئ تاسې مال د یتیم ته مګر (ورنژدې شئ) په هغې طریقې سره چې هغه ډېره ښه وي، تر هغه پورې چې ورسیږي دغه یتیم قوت (ځلمیتوب) خپل ته.

تفسیر: د یتیم (پلار مړي) په مال کې بېځایه تصرف حرام دی، هو ! په بهترې او مشروعې طریقې او احتیاط سره د یتیم په مال کې د ده «ولي» او «وصي» تصرّف کولی شي، هر کله چې یتیم ځلمی او قوي شو، او د خپلو کارونو د سنبالولو اهل وګرځېد؛ نو مال دې وروسپارل شي.

وَأَوْفُوا۟ ٱلْكَيْلَ وَٱلْمِيزَانَ بِٱلْقِسْطِ ۖ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۖ

او پوره کوئ تاسې پیمانه او تول په عدل (انصاف) سره، نه ورکوو مونږ تکلیف هیڅ نفس ته مګر په اندازه د توان (طاقت) د هغه.

تفسیر: یعني د خپل طاقت سره سم د دغو احکامو په ځای راوړلو کې کوښښ وکړئ، او په هم دغو تاسې مکلف یئ، الله تعالی هیڅا ته د ده له مقدوره زیات تکلیف نه ورکوي.

وَإِذَا قُلْتُمْ فَٱعْدِلُوا۟ وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۖ

او کله چې خبرې کوئ تاسې (په کوم شي کې) نو حق (رښتیا) ووایئ اګر که وي (مقول له یا مقول علیه) خاوند د خپلوۍ (هم)،

تفسیر: یعني ښایي د هیڅا قرابت او محبت د انصاف او حق ویلو مانع ونه ګرځي.

وَبِعَهْدِ ٱللَّهِ أَوْفُوا۟ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٢﴾

او په عهد د الله وفا کوئ تاسې، دا (درې امرونه یوه نهي) حکم کړی دی (الله) تاسې ته په هغه سره لپاره د دې چې پند واخلئ تاسې !.

تفسیر: ښایي د الله تعالی په اوامرو او نواهیو باندې په کلکې عقیدې سره عمل وکړئ ! که د الله تعالی په نامه نذر پر ځان ومنئ، یا قسم وخورئ؛ ښایي چې هغه پر ځای کړئ ! ولې په دې شرط سره چې په کومې نامشروعې خبرې نه وي.

وَأَنَّ هَٰذَا صِرَٰطِى مُسْتَقِيمًا فَٱتَّبِعُوهُ ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا۟ ٱلسُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِۦ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّىٰكُم بِهِۦ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿١٥٣﴾

او (حکم کړی دی الله چې) په تحقیق دغه (د دې سورت ذکر شوي احکام) لاره ځما ده برابره (جنت ته)، نو متابعت وکړئ تاسې د دغې (لارې)، او مه کوئ متابعت د (نورو کږو) لارو؛ نو

تار په تار به کړي (دغه متابعت) تاسي له لارې (سمې) د الله نه (چې د وحيې اتباع او د برهان اقتفاء ده)، دا (اتباع د سمې لارې) حکم کړی دی (الله) تاسې ته په دې سره لپاره د دې چې ځان وساتئ تاسې (له ګمراهی نه).

تفسير: يعنې د پورتنيو مذکوره احکامو تعميل او د الله تعالی د عهد عملاً او اعتقاداً پوره کول، همدغه سمه لاره (صراط مستقيم) ده، چې د هغې د طلب تلقين د (الفاتحه) په سورت کې په ﴿اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ﴾ سره شوې ده، دغه لاره تاسې ته درښوولې شوې ده، اوس پر هغې سم برابر تلل ستاسې کار دی، هر څوک چې پرته له دې لارې تګ وکړي؛ نو د الله تعالی له لارې څنې بې لارې او ګمراه کيږي.

تنبيه: له عبد الله بن عبّاس رضي الله تعالی عنهما څخه روايت دی، چې دغه درې مذکوره آيتونه چې په لسو احکامو مشتمل دي؛ له محکماتو څنې دي، چې په هيڅ شريعت کې يې نسخ نه ده راغلې.

ثُمَّ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِيۡۤ اَحۡسَنَ وَتَفۡصِيۡلًا لِّـكُلِّ شَىۡءٍ وَّهُدًى وَّرَحۡمَةً لَّعَلَّهُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّهِمۡ يُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۵۴﴾

پس (له دې نه دا واورئ چې) ور کړی وو مونږ موسی ته کتاب (تورات) لپاره د تمام (پوره کولو د نعمت) پر هغه چا باندې چې نيکي کوي او (لپاره د بيان او) تفصيل د هر (ديني) شي او (لپاره د) هدايت او رحمت لپاره د دې چې دوی په ملاقات درب خپل ايمان راوړي.

تفسير: معلوميږي هغه احکام چې پاس له ﴿قُلۡ تَعَالَوۡا اَتۡلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمۡ عَلَيۡكُمۡ﴾ څخه تر دې ځايه پورې مونږ ته اورولي شوي دي؛ دغه همېشه جاري او ګرد انبياء عليهم السلام او شرائع پرې متفق وو، وروسته الله تعالی پر موسی عليه السلام تورات نازل کړ، چې شرعي احکام په کې په زيات تفصيل سره مندرج وو، د «تورات» له اعطاء څخه وروسته د هغې زمانې پر نيکي کوونکو باندې الله تعالی خپل نعمتونه پوره او کامل کړل، د هر يوه ضروري شي احکام يې په شرح او بسط سره بيان وفرمايل، او د هدايت او رحمت وَرونه يې مفتوح کړل؛ تر څو خلق پرې په ښه شان سره وپوهيږي، او پرې عمل وکړي، او له خپل الله تعالی سره د ملاقات پوره يقين حاصل کړي.

وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنۡزَلۡنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوۡهُ وَاتَّقُوۡا لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ ﴿۱۵۵﴾

او دا (قرآن يو) کتاب دی چې نازل کړی دی مونږ هغه مبارک (برکتناک ډېر ګټور) دی؛ نو متابعت وکړئ تاسې د دغـه (قرآن) او وويرېږئ (له عذابه او ځان وساتئ له مخالفته يې) لپاره د دې چې په تاسې رحمت وکړ شي.

اَنۡ تَقُوۡلُوۡۤا اِنَّمَاۤ اُنۡزِلَ الۡكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيۡنِ مِنۡ قَبۡلِنَا وَاِنۡ كُنَّا عَنۡ دِرَاسَتِهِمۡ لَغٰفِلِيۡنَ ﴿۱۵۶﴾

(او نازل کړی وو مونږ دا کتاب لپاره د دې) چې و (نه) وايئ (ای عربو په قيامت کې): ببشکه خبره دا ده چې نازل شوی وو کتاب پر دوو طائفو (يهودو او نصاراوو) پخوا له مونږه، او ببشکه شان دا دی چې وو مونږ له لوستلو او لولولو د دوی څخه غافلان (ناپوهان چې څمونږ په ژبې نه وو).

تفسير: يعنې د دې مبارک کتاب لوی قرآن له نزوله وروسته د عربو اميانو ته د داسې وينا موقع نه ده پاتې شوې، چې هغه پخواني آسماني کتابونه چې د الله تعالی پر شرائعو مشتمل دي، او پخوا له دې نازل شوي دي، څمونږ له علم او پوهې سره سم په هغو دواړو فرقو يهودانو او نصرانيانو باندې نازل شوی دی، چې هغه خلق يې پخپلو منځونو کې سره

لولي او لولوي يې، او ځينو د هغو ترجمه په عربي سره هم کوله، مثلا «ورقة بن نوفل» او نور له ډېرې مودې راهيسې په دغه شوق، رغبت، فکر او اندېښنه کې مشغول او لګيا وو، چې عرب يهود کړي، يا يې نصراني وګرځوي، مګر مونږ د دوى له هغو تعليماتو، تدريساتو، ښوونو او ويناوو سره هيڅ علاقه او ارتباط نه درلود (لرلو).

بحث په دې کې نه دی؛ چې کوم شی چې يهودان او نصرانيان لولي او لولوي يې، تر کومې اندازې پورې پخپل اصل سماوي صورت محفوظ پاتې دی، بلکه يواځې مقصود هم دغومره دی، چې د دې شرائعو او کتابونو اصلي مخاطبان فقط بني اسرائيل وو، اګر که د هغو د تعليم ځينې اجزاء لکه د توحيد او ديني اصولو دعوت د خپلې پراختيا او تعميم په اثر له بني اسرائيلو څخه ما سوا د نورو اقوامو په حق کې هم عام شوى وي، او سره له دې کوم شريعت او سماوي کتاب چې په مجموعي هيئت سره پر کوم خاص قوم د هغوى د مخصوصو فوائدو لپاره نازل شوى وي، که د هغه له درس او تدريس سره نور اقوام خصوصاً عربو غوندې يو غيور او ځان باندې ځانمننې قوم څه علاقه او اړه ونه لري؛ څه مستبعد نه دی، نو ځکه دوى ويلی شو چې کوم آسماني کتاب او شريعت ځمونږ په لوري نه دی راغلی، او مونږ له هغو شرائعو سره چې د بل کوم مخصوص قوم لپاره لېږلي شوي دي؛ دومره علاقه نه لرو، نو بيا به مونږ د شرائعو په ترک ولې مأخوذ کيږو؟

مګر نن دوى ته د داسې حيلو او پلمو (بهانو) کولو موقع نه ده پاتې، د الله تعالى حجّت د ده د روښان کتاب د عمومي هدايت او رحمت باران مخصوصا د دوى په کورونو نازل کړى شوى دی، تر څو دوى پخپله هم ترې لومړى مستفيد شي، او بيا دا د الله تعالى امانت او رحمت تمام سور، تور، زيړ، سپين او نورو نسلونو او توکمو او د مشرق (لمر خاته) مغرب (لمر پرېواته) شمال (ښې) او جنوب (سهيل) ګردو (ټولو) هستېدونکو ته په ډېر احتياط او حفاظت سره ورسوي، ځکه چې دغه کتاب د کوم خاص قوم او ملک لپاره نه دی لېږلی شوی، او د ده مخاطب ګرد (ټول) جهان دی، لکه چې د الله تعالى په فضل او توفيق د عربو په وسيله د ملک العلاّم دغه آخري او عام پيغام د دنيا ټولو ځايونو ته تبليغ او اعلام شوی دی، والحمد لله على ذلک.

أَوْ تَقُولُوا لَوْ أَنَّا أُنزِلَ عَلَيْنَا الْكِتَابُ لَكُنَّا أَهْدَىٰ مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَاءَكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ ۚ

يا چې و (نه) وايئ (ای عربو په قيامت کې) که وئ مونږ چې نازل کړی شوی وی پر مونږ باندې کتاب (لکـه چې په دوی نازل شوی دی)؛ نو هرو مرو (خامخا) وو به مونږ ښه لاره موندونکي له دوی نه، نو په تحقيق راغلی دی تاسې ته حجّت ښکاره (عربي قرآن) له رب ستاسې او هدايت او رحمت (له جانبه د الله ای مؤمنانو پس متابعت کوئ د ده).

تفسير: يعني د پخوانيو امتونو د احوالو له اورېدلو څخه ښايي ستاسې په زړونو کې داسې يو هوس، ارمان، شوق، ذوق او ولوله پيدا شوي وی، که پر مونږ باندې د الله تعالى کتاب نازل شوی وی؛ نو مونږ به له نورو ځنې زيات عمل پرې کاوه، او نورو ته به مو د خپلو ښو اعمالـو آثار ورښوول، نو ځکه تاسې ته له هغوی ځنې ډېر ښه کتاب درکړ شو، څو اوس په علم الشّهود سره هم وګورو چې څوک ښه عمل پرې کوي؟ او خپل محاسن ښوولی شي؟.

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن كَذَّبَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَصَدَفَ عَنْهَا ۗ سَنَجْزِي الَّذِينَ يَصْدِفُونَ عَنْ آيَاتِنَا سُوءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوا يَصْدِفُونَ ﴿١٥٧﴾

نو څوک دی زيـات ظالـم (يعنې نشته لوی ظالم) له هغه چا چې نسبت د دروغو کوي په آيتونو د الله، او څنګ کوي (ګرځي) له دې (آيتونو) ځنې، ژر به (مونږ) سزا ورکړو هغو کسانو ته چې

څنګ کوي (ګرځي) دوی له آیتونو ځمونږ څخه سخت عذاب په سبب د دې چې وو دوی چې څنګ به يې کاوه (ګرځېدل به له حق څخه).

تفسیر: اوس که وروسته د داسې روښان او بې مثاله کتاب له درتللو څخه څوک چې د ده آیتونو ته د دروغو نسبت وکړي، یا يې له قبلولو څخې غاړه وغړوي، یا د نورو مخه ونیسي، چې پرې ایمان رانه وړي، نو له ده څخې لوی ظالم به بل نه وي.

تنبیه: د ﴿وَصَدَفَ عَنْهَا﴾ دوه معناګانې له اسلافو څخې منقولې دي: «امتناع»، او «اعراض»، دلته مغفور شیخ الهند د «اعراض» معنی غوره کړېده.

هَلْ يَنظُرُونَ إِلَّا أَن تَأْتِيَهُمُ الْمَلَائِكَةُ أَوْ يَأْتِيَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِيَ بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ ۗ يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِن قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا ۗ قُلِ انتَظِرُوا إِنَّا مُنتَظِرُونَ ﴿١٥٨﴾

نه کوي انتظار دوی (د هيڅ شي) مګر د دې چې راشي دوی ته ملائکې (پرښتې د موت یا د عذاب) یا راشي رب ستا، یا راشي ځينې دلائل (د قدرت) د رب ستا (چې علامې د قیامت دي): په هغه ورځ کې چې راشي ځينې دلائل د (قدرت) د رب ستا؛ نه به رسوي فائده (نفع) هيڅ نفس ته ایمان راوړل د ده، چې نه وي دا نفس چې ایمان يې راوړی وي پخوا (له دې نه) یا (نه وي) چې کسب يې کړی وي په ایمان خپل کې څه خیر (نیکي)، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې انتظار کوئ تاسې، بېشکه مونږ هم انتظار کوونکي یو.

تفسیر: یعنې د الله تعالی له لوري د هدایت معین حد پوره شو، انبیاء علیهم السلام مبعوث او شرائع نازل شول، او آسماني کتابونه رالښکته شول، تر دې چې د پاک الله وروستنی کتاب هم راغی، نو بیا هم يې دوی نه قبلوي، نو ښايي چې دوی دې خبرې ته سترګې په لار ناست وي، چې پخپله پاک الله یا پرښتې راشي، یا د قدرت کومه لویه علامه (لکه قیامت یا کوم بل لوی دلیل) ښکاره شي.

نو باید پوه شئ چې د قیامت له علائمو څخې یوه علامه دا هم ده؛ چې د هغه له ظهور نه وروسته نه د کافر ایمان راوړل او نه د عاصي توبه کول معتبر دي.

د صحیحینو احادیث دا راښیي چې دغه علامه د مغرب له لوري د لمر ختل دي، یعنې کله چې د پاک الله اراده د دنیا په ختمولو باندې وشي، او د موجوده عالم نظام سره ګډوډ او ویجاړ شي، نو د موجوده طبیعي قوانینو په خلاف به ډېر عظیم الشأن خوارق او لويې بې مثاله او بې سارې پېښې واقع شي، چې د هغو له جملې نه یوه دا ده چې لمر به د مشرق په ځای له مغربه راڅرګند شي.

د «مغرب له خوا د لمر له ختلو» څخه وروسته به د ګرد عالم په حق کې همدغه حکم وي، چې د هيچا ایمان او توبه به معتبره نه وي، په ځينو روایاتو کې د «طلوع الشمس من مغربها» سره ځينې نورې علامې هم بیانې شوي دي، مثلا «خروج الدجّال، خروج الدّابّه» او نور.

د دې روایاتو څخه داسې مطلب څرګندیږي: کله چې د دغو علائمو ګرده (ټوله) مجموعه متحققه شي، او دغه هلته کېدی شي چې «طلوع الشمس من المغرب» هم متحقق شي، نو د توبې ور تړل کيږي، او بېل بېل پر هره علامه باندې دا حکم نه دی متفرع.

ځمونږ د زمانې ځينو ملحدانو چې هرې یوې فوق العاده واقعې ته د استعارې په رنګ ورکولو سره عادي دي، دوی د «طلوع الشمس من المغرب» د استعارې جوړولو په فکر کې هم دي، غالبا د دوی په فکر کې به د قیامت راتګ هم تش یو ډول استعاره وي. (العیاذ بالله).

تنبيه: دا چې فرمايي: «راشي پرښتې يا راشي رب ستا»؛ د دې تفسير په دويم جزء د بقرې سورت په (۲۱۰) آيت (۲۵) رکوع کې د ﴿هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّآ أَن يَأۡتِيَهُمُ ٱللَّهُ فِي ظُلَلٖ مِّنَ ٱلۡغَمَامِ﴾ الآيه - کې تېر شوی دی، هلته دې ولوستل شي !، او د ﴿أَوۡ كَسَبَتۡ فِيٓ إِيمَٰنِهَا خَيۡرٗا﴾ د جملې عطف پر ﴿ءَامَنَتۡ مِن قَبۡلُ﴾ دی، او د عبارت تقدير د ابن المنير «رحمه الله» او نورو محققينو «رحمهم الله» په نزد داسې دی:

«لا ينفعُ نفساً إيمانُها أو كسبُها خيراً لم تكن آمنت من قبل أو لم تكن كسبتْ في إيمانها خيراً» «يعني هغه چې لا له پخوا يې ايمان نه وي راوړی په هغه وخت کې به يې ايمان نه نافع کيږي، او هغه چې لا له پخوا يې د خير کسب نه وي کړی؛ د ده دخير کسب به نافع نه وي، يعنې توبه يې نه قبليږي».

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ فَرَّقُواْ دِينَهُمۡ وَكَانُواْ شِيَعٗا لَّسۡتَ مِنۡهُمۡ فِي شَيۡءٍۚ إِنَّمَآ أَمۡرُهُمۡ إِلَى ٱللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُواْ يَفۡعَلُونَ ١٥٩﴾

بېشکه هغه کسان چې تار په تار کړی يې دی دين خپل (چې ځينې يې مني او ځينې يې نه مني) او شول دوی فرقې فرقې؛ نه يې ته له دوی نه په هيڅ شي کې (يعنې هيڅ تعرض ورته مه کوه !)، بېشکه همدا خبره ده چې امر (کار) د دوی (سپارلی شوی دی) الله ته، بيا به خبر کړي (الله) دوی په هغه چې وو دوی چې کول به يې.

تفسير: په ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ فَرَّقُواْ دِينَهُمۡ﴾ سره يې بيا اصل مطلب ته رجوع وکړه، يعنې د الهي دين لاره (صراط مستقيم) يوه ده، هغه کسان چې د دين په اصل کې تفرقه پيدا کوي، او په خپل سر بېلې بېلې لارې راباسي، او دګوند (ډله) اوګوندبازۍ (ډله بازۍ) په بلا آخته کيږي، که دوی يهوديان وي يا نصرانيان يا هغه د اسلام مدعيان چې په مستقبل کې د ديني عقائدو د ځادر شيروونکي دي، له دغو خلقو سره ستاسې هيڅ غرض او کار نشته، دا ګرد (ټول) په ﴿فَتَفَرَّقَ بِكُمۡ عَن سَبِيلِهِۦ﴾ کې داخل دي، تاسې له دوی ځنې د برائت او بېزارۍ اعلان وکړئ !، او د پاک الله په همغسې سمې صافې لارې (صراط مستقيم) باندې ټينګ رهي (روان) اوسئ !او د هغوی عاقبت او انجام پاک الله ته وسپارئ ! الله تعالی به په دنيا يا په آخرت کې دوی ته د هغوی د اختلاف او انشقاق نتائج ورڅرګند کړي. (چې انتقام ترې اخلې په دنيا کې، او که آخرت ته يې پرېږدي، او که توبه پرې باسي).

﴿مَن جَآءَ بِٱلۡحَسَنَةِ فَلَهُۥ عَشۡرُ أَمۡثَالِهَاۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجۡزَىٰٓ إِلَّا مِثۡلَهَا وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ ١٦٠﴾

هر هغه چا چې راتله يې وکړه په يوه نېکۍ نو ده ته ده (جزاء د) لسو (نېکيو په) مثل د هغې (نېکۍ)، او هر هغه څوک چې راتله يې وکړه په بدۍ نو سزا نشي ورکولی (ده ته) مګر په مثل د همغې (بدۍ)، او په دوی به ظلم ونه کړی شي (په تنقيص د ثواب يا په تزييد د عقاب).

﴿قُلۡ إِنَّنِي هَدَىٰنِي رَبِّيٓ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ دِينٗا قِيَمٗا مِّلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۚ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ١٦١﴾

ووايه (ای محمده ! دغو متفرقانو ته): بېشکه زه چې يم هدايت (ښوونه) کړېده ما ته رب ځما لارې سمې برابرې ته دين صحيح برابر، ملت (دين) د ابراهيم، حال دا چې حنيف وو (په حق دين ټينګ ولاړ وو، او له باطله څخه بېزاره وو) او نه وو له مشرکانو (لکه چې مشرکان وايي).

﴿قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝١٦٢ لَا شَرِيكَ لَهُ ۖ وَبِذَٰلِكَ أُمِرْتُ وَأَنَا أَوَّلُ الْمُسْلِمِينَ ۝١٦٣﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه لمونځ ځما او قرباني ځما او (طاعتونه د) ژوندون ځما او مرګ ځما (پر صالح عمل) خاص الله لره دی چې رب (پالونکی) د ټولو عالمیانو (د جهان) دی. نشته هیڅ شریک ده لره (په دغو تېرو عبادتونو کې) او په هم دې (توحید) امر (حکم) کړی شوی دی ماته او زه اول د مسلمانانو (الله ته غاړه ایښودونکو) ځخه یم.

تفسیر: په دې آیت کې د توحید او د تفویض د خورا (ډېر) لوړ مقام سراغ او پته ورکړی شوې ده، چې پر هغه ځمونږ سردار او محمد مصطفی صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم فائز او کامیاب شوی دی، د لمانځه او د قربانی له ذکره په خصوصیت سره د هغو مشرکانو تردید بالتصریح وشو؛ چې بدني عبادت او قرباني به یې د غیر الله په نامه کوله.

﴿قُلْ أَغَيْرَ اللَّهِ أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۚ﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) آیا بې له الله غواړم زه بل رب (پالونکی؟ بلکه نه یې غواړم) حال دا چې هم دی رب د هر څیز دی.

تفسیر: پخوا د توحید في الالوهیت ذکر وو، اوس د توحید في الربوبیت تصریح فرمایي، یعنې همداسې چې معبود ما سوا له ده بل څوک نه دی؛ مستعان هم بل هیڅوک نشي کېدی.

﴿وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ۝١٦٤﴾

او کسب نه کوي (د بدی) هیڅ یو نفس مګر (ضرر یې دی) پر (ذمه د) ده، او نه باروي هیڅ نفس ګناهګار ګناه دبل نفس (بلکه هر څوک خپل بار وړي)، بیا خاص طرف د رب ستاسې ته بېرته ورتلل ستاسې دي (په قیامت کې) نو خبر به کړي تاسې په هغه شي چې وئ تاسې چې په هغه کې به مو اختلاف کولو (په دنیا کې په دیني امورو کې).

تفسیر: کفارو له مسلمانانو سره په توحید او نورو امورو کې جګړې کولې، او ویل به یې چې راشئ د توحید لار پرېږدئ، او ځمونږ د شرک په لارې رادرومئ، که په دې کې په تاسې باندې څه ګناه راشي؛ هغه دې ځمونږ په غاړه وي: ﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا اتَّبِعُوا سَبِيلَنَا وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ وَمَا هُم بِحَامِلِينَ مِنْ خَطَايَاهُم مِّن شَيْءٍ ۖ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ۝١٢﴾ (۲۰ جزء د العنکبوت سورت (۱۲) آیت (۱) رکوع) دلته د هغه ځواب ورکړی شوی دی، چې د هر چا ګناه د ده پخپله غاړه ده، یو د بل د ګناه ذمه واري نشي کولی، او نه د بل بار وړی شي، باقي ستاسې دا جګړې او اختلافونه کله چې د الله تعالی په حضور کې وړاندې شي؛ ګرد سره فیصله کېږي (او هلته به غالب او مغلوب (وړ ـ پړ) درښکاریږي)، دا دنیا د فیصلې ځای نه دی، بلکه د امتحان او ازموېښت کور دی، لکه چې په پخواني آیت کې یې خبر راکړ.

﴿وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ۗ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝١٦٥﴾

او دغه (الله) هغه ذات دی، چې ګرځولي يې يئ تاسې خليفګان د ځمکې او پورته کړي يې دي ځينې ستاسې د پاسه د ځينو (نورو په) درجو مرتبو کې، د دې لپاره چې وازمويي تاسې په هغو (حکمونو) کې چې درکړي يې دي تاسې ته، بېشکه رب ستا ډېر ژر دی عذاب (د ده پر هغه چا چې اراده وفرمايي) او بېشکه الله خامخا ښه بخښونکی دی (د شاکرينو) ډېر رحم کونکی دی (په شکر کوونکو).

تفسير: يعنې الله تعالى تاسې په ځمکه کې يو له بله نائبان او وکيلان ګرځولي يئ، چې يو قوم ځي، او بل قوم د هغه په ځای کيني.

﴿وَرَفَعَ﴾ «او پورته کړي يې دي ځينې ستاسې د پاسه د ځينو نورو په درجو مرتبو کې» يعنې ستاسې تر مينځ يې بې حده تفاوت او د مدارجو فرق کړی دی، لکه چې په شکلونو، صورتونو، رنګونو، لهجو، اخلاقو، ملکاتو، محاسنو، مزاياوو، رزقونو، دولتونو، عزتونو، مرتبو او نورو صفاتو او مميزاتو او خصلتونو کې د انساني افرادو په منځ کې بېشماره درجې شته (چې ځوک يې عالمان کړل، ځوک يې جاهلان، ځوک يې بادشاهان کړل، ځوک يې غريبان، ځوک يې ماړه کړل، ځوک يې وږي).

﴿لِيَبْلُوَكُمْ﴾: «د دې لپاره چې وازمويي تاسې په هغه (حکم) کې چې درکړی يې دی تاسې ته»، يعنې چې درښکاره شي په داسې حالاتو کې کوم يو تر کومه ځايه پورې د الله تعالى حکم مني، او وازمويي تاسې په هر هغه شي کې چې درکړی يې دی تاسې ته، لکه مال او جاه، چې معلوم او ببل شي شاکر له صابره.

ابن کثير «رحمه الله» له ﴿فِي مَآ ءَاتَىٰكُمْ﴾ ځنې هغه مختلفې درجې او احوال مرادوي، چې الله تعالى حسب الاستعداد او لياقت په انسانانو کې ايښي دي، په دې تقدير به د ازموينې حاصل داسې کيږي: مثلاً غني د خپلې غنا په حالت کې تر کومه ځايه پورې شکر باسي؟ او فقير د فقر په حالت کې تر کومې اندازې د صبر ثبوت راڅرګندوي؟ وقس عليه البواقي.

په هر حال هغه ځوک چې په دغه ازموينت کې بيخي نالايق ثابت شي، حق تعالى د ده په حق کې ﴿سَرِيعُ الْعِقَابِ﴾ دی، او هر چا چې لږ قصور کړی وي؛ د هغه په حق کې «غفور» دی، او هر چا چې خپلې وظيفې پوره سرته رسولې وي؛ د هغه په حق کې «رحيم» دی.

(تمت سورة الأنعام بعون الله الملك العلّام)

(ونطلب منه في الدنيا حسن الإقدام وفي العقبىٰ حسن الإكرام)



# سُورَةُ الأَعْرَافِ

«د (الأعراف) سورت مکي دی، پرته له (۱۶۳) تر (۱۷۰) آیت پورې چې مدني دي» «(۲۰۶) آیتونه (۲۴) رکوع لري، په تلاوت کې (۷) او په نزول کې (۳۹) سورت دی» «د (ص) سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمٓصٓ ﴿١﴾ كِتٰبٌ اُنْزِلَ اِلَيْكَ فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ

(دا) کتاب چې نازل کړی (لېږلی) شوی دی تاته (ای محمده !) نو نه دې وي په سينه ستا کې تنګي (د رسولو) د ده (چې له اولو به يې څوک نه مني).

تفسير: ابن عباس رضي الله تعالی عنه د «حرج» معنی په شک سره کړېده، ګواکې ﴿فَلَا يَكُنْ فِيْ صَدْرِكَ حَرَجٌ مِّنْهُ﴾ به له ﴿فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ﴾ سره يوه معنی ولري، رسول الله صلی الله عليه وسلم چې الله تعالی خپل کتاب پرې نازل فرمايلی دی، د ده له شانه څخه لرې ده، چې د هغه د احکامو او اخبارو په نسبت لږ څه اندېښنه يا شک او شبهه د ده په زړه کې لاره ومومي.

نورو مفسرينو دغه الفاظ پر خپلې ظاهري معنی ګانو باندې پرېښي دي، لکه چې شيخ الهند «رحمه الله» هم دغه اختيار کړېده، يعنې هغه ته (چې له ګردو خلائقو څخه غوره شوی، او کتاب پرې نازل شوی دی) وړ او لايق نه دي؛ چې د احمقانو او معاندانو له طعنو، بدو او چټي (فضول) سوالاتو څخه متأثر شي، او د دې کتاب د تبليغ له کومې برخې څخه منقبض او زړه تنګی شي: ﴿فَلَعَلَّكَ تَارِكٌۢ بَعْضَ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ وَضَآئِقٌۢ بِهٖ صَدْرُكَ اَنْ يَّقُوْلُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ اَوْ جَآءَ مَعَهٗ مَلَكٌ ۗ اِنَّمَآ اَنْتَ نَذِيْرٌ ۗ وَاللهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ﴾ (۱۲ جزء د هود سورت (۱۲) آيت، (۲) رکوع).

که په فرض محال سره پخپله د رسول صلی الله عليه وسلم په زړه کې د ده د کتاب او د هغه د مستقبل په نسبت په نهايت وثوق او انشراح سره قلبي اطمينان حاصل نه وي؛ نو دی به خپله د انذار او تذکير فريضه په کوم قوّت او جرأت سره اداء کړي؟.

لِتُنْذِرَ بِهٖ وَذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٢﴾

لپاره د دې چې وويروې (ته ای محمده !) په دغه (کتاب) سره (کفار له جهنم څخه) او (لپاره د دې چې پند ورکړې پرې) په پند ورکولو سره مؤمنانو ته (يا دا قرآن پند دی لپاره د مؤمنانو).

تفسير: يعنې د کتاب له نزوله دا غرض دی، چې تاسې ګردې دنيا ته د دوی له مستقبل او د بدی له انجام څخه خبر ورکړئ، او دغه د مؤمنانو په حق کې په خاص طور سره د يوې مؤثرې وينا او پند په شان ثابت شي.

اِتَّبِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَلَا تَتَّبِعُوْا مِنْ دُوْنِهٖٓ اَوْلِيَآءَ ۗ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿٣﴾

متابعت وکړئ (ای مکلفانو !) د هغه شي چې نازل کړی (لېږلی) شوی دی تاسې ته له (جانبه د)

رب ستاسې، او متابعت مه کوئ تاسې بې له الله د (نورو) دوستانو (خپلو چې شياطين دي)، لږ شاني پند اخلئ تاسې.

تفسير: «﴿قَلِيلًا﴾ مفعول مقدم دی ﴿تَذَكَّرُونَ﴾، او ﴿مَّا﴾ زائده ده»، انسان که د حق تعالی د لوی تربيت په برکت د خپل ابتداء او انتهاء، او د طاعت او معصيت پر نتائجو په پوره ډول فکر او دقت وکړي؛ نو هيڅبېږي به داسې جرأت ونه کړي، چې د خپل کريم پروردګار نازل شوي هدايات پر پرېږدي، او د شياطين الانس والجن په رفاقت خوښ او د دوی متابعت وکړي، له تېرو اقوامو څنې د هغو کسانو چې د الله تعالی د کتابونو او د رسولانو په مقابل کې يې داسې رويه غوره کړې وه، او هغوی ته کومې دنيوي سزاوې چې ورکړی شوي دي؛ وروسته راځي.

﴿وَكَم مِّن قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا فَجَاءَهَا بَأْسُنَا بَيَاتًا أَوْ هُمْ قَائِلُونَ ۝٤ فَمَا كَانَ دَعْوَاهُمْ إِذْ جَاءَهُم بَأْسُنَا إِلَّا أَن قَالُوا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ۝٥﴾

او ډېر له (اوسېدونکو د) قريو (د کفارو او فجارو) څنې هلاک کړي دي مونږ دوی، نو رابه غی (اهل د) هغو ته عذاب څمونږ حال دا چې دوی اوده (غافل) به وو د شپې (لکه قوم د لوط) يا اوده (غافل) به وو په غرمه کې (لکه قوم د شعيب). نو نه به وه وينا د دوی کله چې رابه غی دوی ته عذاب څمونږ مګر دا چې ويل به دوی: بېشکه چې مونږ وو مونږ ظالمان (پخپلو ځانونو چې د رسولانو تکذيب مو کولو).

تفسير: يعنې کله چې د دوی ظلم او عدوان، کفر او عصيان له حده تېر شو، نو په دنيوي لذاتو او شهواتو کې آخته او غرق او د الله تعالی له عذابه بالکل بې فکره او د استراحت اخيستلو په مزو کې ډوب شول، چې ناڅاپه څمونږ عذاب پرې نازل شو، بيا نو له دوی څنې په دې دهشتناکې منظرې او هلاک کوونکې نندارې او اله ګوله کې ګردې لويې، ځانمنني (لويي) او تکبر هېر شول، او له هر لوري د ﴿إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ﴾ چيغه پورته او پر ته (علاوه) له زارۍ، نتواتې، ژړا او انګولا څينې بل هيڅ شی به نه اورېدل کيږي، ګواکې په دغه وخت کې دوی ته واضح او څرګنديږي، او دوی پخپله اقرار کوي، چې پاک الله په هيڅا باندې ظلم نه کوي، مونږ پخپله پر خپلو ځانونو ظلم کړی دی.

تنبيه: د ﴿فَجَاءَهَا بَأْسُنَا﴾ د (ف) په نسبت د مفسرينو څو اقواله دي، غالبا شيخ الهند «رحمه الله» هغه د ﴿أَهْلَكْنَاهَا﴾ تفسير او تفصيل مقرر کړی دی، لکه چې ويلی شي: ) «توضأ فغسل وجهه وذراعيه» «هغه سړي اودس وکړ، نو يې وويڅل خپل مخ او دواړه لاسونه او نور اعضاء» په دې مثال کې د مخ او لاسونو وينځل، د اودس کولو تفصيل او تفسير دی، همداسې دلته د هلاک کولو د تفسير او تفصيل کيفيت په عذاب سره بيان کړ شو، والله أعلم.

عامو مفسرينو د دې آيت ترجمه داسې کړې ده: «او ډېر دي له اوسېدونکو د کليو د کفارو او فجارو، چې هلاک کړي دي مونږ يعنې اراده کړې وه مونږ د هلاکولو د دوی، پس راغلی دی اهل د هغه ښار ته عذاب څمونږ د شپې چې وخت د غفلت او خوب دی، يا به دوی د غرمې په خوب اوده وو، چې وخت د آرام او راحت دی، او عذاب په کې ډېر سخت وي».

﴿فَلَنَسْأَلَنَّ الَّذِينَ أُرْسِلَ إِلَيْهِمْ وَلَنَسْأَلَنَّ الْمُرْسَلِينَ ۝٦﴾

نو خامخا وبه پوښتو (په قيامت کې) هرومرو (خامخا) هغه (امتونه) چې ليږلي شوي دي دوی ته (رسولان چې څه اجابت يې کړی دی)، او خامخا وبه پوښتو هرومرو (خامخا) رسولان (هم له اداء د رسالت او له ابلاغه د احکام او د دې چې ستاسې امتونو څرنګه اجابت وکړ؟).

تفسیر: له هغو امتونو څخه چې پیغمبران په کې مبعوث ورلیږلي شوي دي پوښتنه کیږي: ﴿مَاذَآ أَجَبۡتُمُ ٱلۡمُرۡسَلِينَ﴾ القصص: ۶۵ «تاسې ځمونږ د مرسلانو بلنه تر کوم ځای پورې منلې ده؟» او له مرسلانو څخه پوښتنه کي چې: ﴿مَاذَآ أُجِبۡتُمۡ﴾ المائدة: ۱۰۹ «تاسې ته د امت له لوري څه ځواب درکړی شوی وو؟».

فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيۡهِم بِعِلۡمٖۖ وَمَا كُنَّا غَآئِبِينَ ۝

نو خامخا بیان به کړو مونږ هرو مرو (خامخا) (احوال د هغوی) دوی ته په علم سره، او نه یو مونږ غائبان (له اعمالو د دوی، بلکه عالمان او شاهدان یو).

تفسیر: یعني ستاسې هیڅ یو لوی او وړوکی، ډېر او لږ عملونه، یا ظاهري او باطني احوال ځمونږ له علمه غائب نه دي، مونږ بې د نورو له وسیلې له یوې یوې ذرې خبردار یو، له خپل ازلي محیط علم سره سم ګرد (ټول) پخواني او وروستني احوال او افعال په ښکاره ډول تاسې ته مخامخ کېښودی شو، هغه اعمالنامې چې د ملائکو له خوا لیکلې شوي دي؛ د یوه ویښته په اندازه هم له علم الله څخه نشي مخالفې کېدی، او د هغو په وسیله اطلاع ورکول یواځې د ضابطې مراعات او د حکومتي نظام مظاهره ده، که نه الله تعالی پخپل علم کې معاذ الله دغو ذرائعو ته له سره نه محتاجیږي.

وَٱلۡوَزۡنُ يَوۡمَئِذٍ ٱلۡحَقُّۚ فَمَن ثَقُلَتۡ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ۝ وَمَنۡ خَفَّتۡ مَوَٰزِينُهُۥ فَأُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُم بِمَا كَانُواْ بِـَٔايَٰتِنَا يَظۡلِمُونَ ۝

او تول (د عملونو) په دغې ورځې کې حق ( رښتینی، یقیني او برابر) دي (لپاره د قطع د عذر)، نو د هر چا چې درانه وختل تولونه (یا تللي شوي نېک عملونه) د ده؛ نو دغه کسان همدوی دي په مراد رسیدلي (بریالي). او د هر چا چې سپک وختل تولونه (یا تلل شوي بد عملونه) د ده (یعنې له نظره ولوېد) نو دغه کسان هغه دي، چې زیان یې رسولی دی دوی نفسونو (ځانونو) خپلو ته (په رسولو یې اور ته) په سبب د هغه چې وو دوی چې په آیتونو ځمونږ به یې ظلم (او ترې انکار به یې) کاوه.

تفسیر: د قیامت په ورځ کې د ګردو (ټولو) خلقو اعمال وزن کیږي، هغه کسان چې قلبي اعمال او د جوارحو افعال یې درانه وي؛ دوی به بریالي (بامراده) وي، او د هر چا وزن چې سپک شي، دی به په خساره کې پاتې وي.

شاه صاحب فرمایي: «د هر چا عمل له وزن سره موافق لیکل کیږي، که یو کار له اخلاص او محبت او شرعي احکامو سره موافق او سم وکړی شي، او پخپل وخت اداء کړ شي؛ نو د هغه وزن به زیاتیږي، او که همغه عمل په ریا او ریب ځان ښودني یا له حکمه څنې چپ یا یې پخپل وخت کې کړی نه وي؛ نو وزن یې کمیږي».

په آخرت کې هغه کاغذونه تللي کیږي؛ چې پر هغو د انسانانو اعمال او احوال قید او ضبط وي او د عملونو، او عاملینو وزن هم په نصوصو کې راغلی دی، نو که حسنه اعمال درانه وختل؛ نو له سیئاتو څخه یې تېریږي، او که حسنات یې سپک وختل نو بیا نیول کیږي.

د نصوصو له مخې مونږ ته دومره راڅرګند شوي دي، چې وزن له داسې یو میزان (تلې) سره کیږي، چې په کې کفّتین (پلې) او شاهین (ډنډۍ) او لسان (موتۍ) او نور شته، لیکن د دغه میزان او تلې دا دواړه کِفّتین به څه نوعیت او کیفیت لري؟ او د هغو د تول معلومولو طریقه او اصول به څرنګه وي؟ د داسې خبرې احاطه کول ځمونږ د عقلونو او افهامو له اندازې څخه لرې دي، او ځمونږ پوهه ورته نشي رسېدلی، نو ځکه د هغو په پوهېدلو سره مونږ نه یو مکلف کړی شوي، بلکه یو میزان لا څه، د هغه عالم څومره نور شیان چې دي، غیر له دې چې مونږ یې یواځې په نامه خبر یو،

او اورو يې، او د هغو په نسبت همغسې عقيده او دومره اجمالي معلومات لرو؛ چې مفهوم يې مونږ ته پاك قرآن او يا مبارك سنت راښوولى دى، له هغه څخه پر زياتو تفصيلاتو څمونږ مطلع كېدل څمونږ د فكر او پوهې له قوت او قدرته وتلي او خارج دي، ځكه د هغو نواميسو او قوانينو لاندې به چې د هغه ابدي عالم وجود نظم او نسق وي، پر هغو باندې مونږ سره له دې چې اوس په دې فاني عالم كې هستوګنه لرو؛ نشو پوهېدې.

د همدې وړې دنيا موازينو (تلو) ته وګورئ ! چې څو انواع او اقسام لري؟ يوه تله ميزان هغه ده چې طلا، نقره او جواهرات پكې تلل كيږي، بله هغه ترازو ده چې غلې، دانې، لرګي، ميوې او نور شيان په كې تلل كيږي، بله هغه عمومي تله ده؛ چې لوى تجارتي پيتې او بارونه پرې تلل كيږي، او اوزان په هغو ستنو (عقربونو) سره راڅرګندوي، چې د ساعت د ستنې په شان وي، او بله هغه تله ده؛ چې ښي او كيڼ لور ته په سانتيګرامونو او ديسيګرامونو خطونو ويشلي شوې ده، او په يوه وړوكي لنګر سره هيسته راهيسته دېخوا هغې خوا كاوه شي.

برسېره پر دى «مقياس الهواء»، «مقياس المياه»، «مقياس الحراره»، «مقياس الرّطوبه»، «مقياس الارتفاع»، «ميزان التضييق» او نور هم يو يو ډول موازين دي، چې په هغو سره د هوا او د اوبو تودوخې، او د لندبلو او د لوړوالي او د تضييق او د حرارت او برودت او نورو شيانو درجې ځانته راڅرګندوو، «ترماميټر» څمونږ د بدن د داخلي حرارت (چې له اعراضو څخه دى) داسې اندازه او تول راښكاروي؛ چې اوس څمونږ په وجود كې دومره درجه تودوخه شته، كله چې په دنيا كې مونږ په شلهاوو داسې جسماني موازين وينو، چې په هغو سره د أعيانو او أعراضو اوزان او درجې او د هغو د تفاوت او توپير (فرق) معلوموو؛ نو د هغه قادر مطلق، خالق بر حق لپاره به دا خبره څه اشكال لري، چې دې داسې يوه حسي تله هم قائمه كړي، چې په هغې سره څمونږ د اعمالو او احوالو د اوزانو او درجاتو تفاوت او توپير (فرق) صورتاً او حساً ظاهر او را څرګند شي.

﴿بِمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَظْلِمُونَ﴾: په سبب د هغه چې وو دوى چې په آيتونو څمونږ به يې ظلم كاوه، او ترې به يې انكار كولو، او همدا له آيتونو څخې انكار كول د هغه حق تلفي ده، چې هغه يې په (يظلمون) سره اداء وفرمايله.

وَلَقَدْ مَكَّنَّاكُمْ فِي الْأَرْضِ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ ۗ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿١٠﴾

او خامخا په تحقيق ځاى (او قدرت او تصرّف) دركړى دى مونږ تاسې ته (اى انسانانو !) په ځمكه كې او پيدا (مقرر) كړي دي مونږ تاسې ته په دغې ځمكې كې (هر قسم اسباب د) ژواندنه، لږ شانې شكر وباسئ تاسې.

تفسير: دغه ﴿قَلِيلًا﴾ هم منصوب او ﴿مَّا﴾ زائده ده، له دې ځايه د ځينو آفاقيه وو او انفسيه وو آيتونو ذكر او بيان شروع كيږي، چې په هغو سره له يوه لوري د حق تعالى پر وجود باندې د دې جهان د كارخانې په حكيمانه نظم او نسق سره استدلال، او د الله تعالى د احساناتو او انعاماتو تذكره فرمايي، او د هغو د شكر د اداء كولو په لوري توجه وركړى شوې ده، او له بل لوري د نبوّت ضرورت او د انبياوو عليهم السلام د راتګ او د دوى د سيرت، او د هغوى د متبعينو او د مخالفينو پاى (آخر) او انجام (چې د دې سورت اصلي موضوع راښكاري) بيانيږي، چې دغه آيتونه د هغو د توطيې او تمهيد په ډول مقدم كړى شوي دي.

وَلَقَدْ خَلَقْنَاكُمْ ثُمَّ صَوَّرْنَاكُمْ ثُمَّ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ لَمْ يَكُن مِّنَ
السَّاجِدِينَ ﴿١١﴾ قَالَ مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ ۖ قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِّنْهُ خَلَقْتَنِي مِن نَّارٍ وَخَلَقْتَهُ مِن طِينٍ ﴿١٢﴾
قَالَ فَاهْبِطْ مِنْهَا فَمَا يَكُونُ لَكَ أَن تَتَكَبَّرَ فِيهَا فَاخْرُجْ إِنَّكَ مِنَ الصَّاغِرِينَ ﴿١٣﴾

او خامخا په تحقيق پيدا كړ مونږ (پلار) ستاسې، بيا صورت جوړ كړ مونږ د (پلار) ستاسې، بيا

وويل مونږ پرښتو ته چې سجده (د تحيّت) وكړئ تاسې آدم ته، نو سجده وكړه دوى (ټولو) مګر ابليس (سجده ونه كړه او) نه وو دى له سجده كوونكو څنې. وويل (الله ابليس ته): څه شي منع كړى ته (څما د حكم د تعميل څخه) چې سجده دې ونه كړه، كله چې امر (حكم) وكړ ما تاتـه !؟، وويل (ابليس): زه غوره يم له آدمه، چې پيدا كـړى دې يم زه لـه اوره، او پيدا كړى دى تا دغه (آدم عليه السلام) له خټې څنې، وويل (الله ابليس ته): نو كوز شه !له دغه (آسمان يا جنت) څخه؛ نو نه دى لايق تاته (اى ابليسه !دا كار) چې تكبّر (لويې نافرماني) وكړې په دې ځاى كې؛ نو ووځه (ترې) بېشكه چې ته يې له ذليلانو.

تفسير: د اور خاصه خفت، حدّت، سرعت، طيش، علوّ او افساد دى، خلاف له خاورې چې په مزاج كې يې استقلال، متانت، تواضع، حلم، او ثبات شته، ابليس چې ناري الأصل وو؛ د سجدې د حكم له اورېدلو څخه د اور تكه سره لمبه شو، او په رأي قائمولو كې يې تلوار او جلتي وكړه، او په پاى (آخر) كې د سرعت، تكبر او تعالي له لارې د رخې (كينې) او حسد په اور كې ولوېد، چې د هغه له سببه د دوزخ په اور كې هم نسكور شو، د ده په خلاف كله چې له آدم عليه السلام څخه غلطي صادره شوه، نو دغه خاورين عنصر ته الله تعالى په خپل فضل او كرم سره د عاجزى، انكسار، انقياد، استكانت، او استغفار لارښوونه وكړه، لكه چې د ده استقامت او انابت د ﴿ثُمَّ اجْتَبٰهُ رَبُّهُ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدٰى﴾ نتيجه پيدا كړه، نو څكه ويل كيږي، چې لعين ابليس د خپلې مادې او عنصر له لحاظه هم د خپل تفضيل او لويي په ادعا كې وغولېد، لكه چې «حافظ شمس الدين ابن القيم «رحمه الله» په «بدائع الفوائد» كې په (۱۵) وجوهو سره د خاورو افضليت پر اور باندې ثابت كړى دى، ومن شاء فليراجعه.

قَالَ أَنْظِرْنِيٓ إِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ ﴿١٤﴾ قَالَ إِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ ﴿١٥﴾

وويل (ابليس چې اى الله !) وګوره (مهلت راكړه) ماته (او مه مې وژنه) تر هغې ورځې (قيامت) پورې چې مخلوق بېرته ژوندي كولى شي (او له خپلو قبرونو پاڅولى شي) !. وويل (الله): بېشكه ته له كتلو (مهلت وركړ) شويو څنې يې (تر اولې نفخې پورې).

تفسير: يعني څرنګه چې تا داسې غوښتنه وكړه، نو وپوهېږه چې دغه خبره لا له پخوا څخه په الهي علم كې موجوده وه، چې تا ته به مهلت دركړى شي، كله چې د الله تعالى حكمت مقتضي شو چې خپل كمالي صفات او مالك الملكوتي (شهنشاهي) عظمت او جبروت ښكاره كړي؛ نو دغه عالم يې پيدا كړ: ﴿اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَيْنَهُنَّ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا﴾ (۲۸ جزء د الطلاق سورت (۱۲) آيت (۲) ركوع).

يعني د ځمكې او آسمان تخليق او د دغو ګردو (ټولو) له نظم او نسق څخه دغه مقصود دى، چې د الله تعالى كامل قدرت او د محيط علم او د نورو صفاتو معرفت خلقو ته حاصل شي، هم دغه الهي معرفت دى چې: ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ﴾ له آيت څخه د ځينو اسلافو د تفسير سره سم په عبادت تعبير كړى شوى دى، او ښكاره ده چې د عالم د تخليق دغه غرض هلته په ډېر كامله وجه سره پوره كېدى شي، چې په عالم كې مطيع او وفادار، باغي او مجرم هر قسم مخلوقات موجـود وي، او هـم «اعداء الله» پوره زور او قدرت ولري، او د دوى د فطري اختيار او قوت د ګردو (ټولو) وسائلو په استعمال كې تر آخره حده پورې خپلواك (خپل اختيار) وي، او كافي مهلت او آزادي هم ولري، او د كـار پـه اختتـام كې د الله تعالى لښكر غالب او بريالى (با مراده) شي، او دښمن پخپلې سزا او هيداد ورسيږي، او له امتحانه وروسته آخرنى برى او كاميابي د الله تعالى د دوستانو په برخه شي، نو خير او شر او د خير او شر د منبع پيدا كول پر همدغه حكمت بنا دي، چې د عالم د تخليق غرض يعني د كمالي صفاتو اظهار او هغه بې له دغه له سره نشي

پوره کېدی: ﴿وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ۝ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ﴾ (۱۲ جزء د هود سورت (۱۱۸) (۱۱۹) آیت، (۱۰) رکوع).

نو ځکه ضروري شوه چې لوی دښمن لعین ابلیس ته (چې د شرونو منبع دی) پوره مهلت ورکړ شي، چې د قیامت تر ورځې پورې خپلې ګردې (ټولې) قواوې او وسیلې همغسې یې چې زړه غواړي؛ استعمال کړي، لیکن دا خبره ښکاره ده، چې په سمه لاره او مستقیم ډول د هغه قادر مطلق او محیط کل مقابله ممکنه نه وه.

﴿قَالَ فَبِمَآ أَغْوَيْتَنِي لَأَقْعُدَنَّ لَهُمْ صِرَاطَكَ الْمُسْتَقِيمَ ۝١٦﴾

وویل (ابلیس) نو قسم دی په سبب د ګمراه کولو ستا ما لره (په سبب د آدم) چې خامخا به کینم زه هرومرو (خامخا) دوی ته (یعنې انسانانو ته د ښویولو لامله) په لاره ستا کې (اسلام) چې سمه صافه ده.

تفسیر: یعنې د غلو په شان به د دوی په ایمان باندې داړې غورځوم، ځکه چې د دوی لامله (له وجې) زه دغې بدې ورځې سره مخامخ شوی یم.

﴿ثُمَّ لَآتِيَنَّهُم مِّن بَيْنِ أَيْدِيهِمْ وَمِنْ خَلْفِهِمْ وَعَنْ أَيْمَانِهِمْ وَعَن شَمَآئِلِهِمْ وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ ۝١٧﴾

بیا خامخا راځم هرومرو دوی ته (په هر وخت) له وړاندې د دوی، او له وروسته د دوی او له ښیو (طرفو) د دوی، او له کیڼو (طرفو) ددوی، او نه به مومې ته اکثر د دوی شکر ایستونکي (مؤمنان).

تفسیر: یعنې له هر لوري به پر دوی باندې یرغلونه (حملې) کوم، د څلورو جهاتو ذکر د جهاتو د تعمیم په لوري اشاره ده.

﴿وَلَا تَجِدُ أَكْثَرَهُمْ شَاكِرِينَ﴾ «او نه به مومې ته اکثر د دوی شکر ایستونکي مؤمنان دا د لعین ابلیس اټکل او تخمین وو چې سم وخوت، ﴿وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (۲۲ جزء، د سبأ سورت (۲۰) آیت (۲) رکوع).

﴿قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْءُومًا مَّدْحُورًا لَّمَن تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنكُمْ أَجْمَعِينَ ۝١٨﴾

وویل (الله: ای ابلیسه) ووځه له دې ځایه په دغسې حال کې چې بد حال غمجن کړی شوی مردود رټلی شوی (لرې کړی شوی یې له رحمته)، (قسم دی) خامخا هر څوک چې متابعت وکړي ستا له دغو (انسانانو) خامخا ډک به کړم هرو مرو (خامخا) جهنم (دوزخ) له تاسې (له تابعانو ستا او له تا له) ټولو.

﴿وَيَٰٓـَٔادَمُ اسْكُنْ أَنتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ فَكُلَا مِنْ حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّٰلِمِينَ ۝١٩﴾

او (وویل الله) ای آدمه ! اوسه ته او (اوسې دې) ښځه ستا (حواء) په جنت کې، نو خورئ تاسې دواړه له هر ځایه (او هر شي ځنې) چې خوښه مو وشي، او مه نژدې کېږئ تاسې دواړه دې ونې ته (په قصد د خوراک، او که له دې جنسه وخورئ)؛ نو شئ به تاسې دواړه له ظالمانو (پخپلو ځانونو).

تفسیر: یعنې آدم علیه السلام او حوّاء رضي الله تعالی عنها ته اجازه وه چې بې له هیڅ ممانعته هر څه چې د دوی زړونه غواړي ودې خوري، او ودې چښي، پرته له یوې معینې ونې څخه چې د هغې خواړه د جنتي ژوندون او استعداد سره مناسب نه وو، نو ځکه یې وویل چې: هغې ته مه نژدې کېږئ ! که نه نقصان به در ورسیږي.

ځما په فکر کې دلته د ﴿فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ﴾ ترجمه داسې وکړه شي، ډېر به ښه او موزونه وي: «بیا به شئ تاسې له زیان موندونکو ځنې»، ځکه چې «ظلم» د نقصان، زیان، کمي او لنډون په معنی هم راځي، لکه ﴿وَلَمْ تَظْلِمْ مِّنْهُ شَيْئًا﴾ (۱۵ جزء د الکهف سورت په (۳۳) آیت (۵) رکوع کې په همدې معنی راغلی دی.

فَوَسْوَسَ لَهُمَا الشَّيْطٰنُ لِيُبْدِيَ لَهُمَا مَا وٗرِيَ عَنْهُمَا مِنْ سَوْاٰتِهِمَا وَقَالَ مَا نَهٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ ﴿۲۰﴾ وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ ﴿۲۱﴾ فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُوْرٍ فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ بَدَتْ لَهُمَا سَوْاٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ وَنَادٰىهُمَا رَبُّهُمَآ اَلَمْ اَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ وَاَقُلْ لَّكُمَآ اِنَّ الشَّيْطٰنَ لَكُمَا عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۲۲﴾

نو وسوسه واچوله دوی دواړو ته شیطان لپاره د دې چې ښکاره کړي دوی دواړو ته هغه چې پټ کړی شوي دي له دې دواړو ځنې له غلیظه وو عورتونو د دوی، او وویل (ابلیس دوی ته): نه یئ منع کړي تاسې رب ستاسې له (خوراک) د دې ونې ځنې؛ مګر له دې جهته چې نه شئ تاسې دواړه پرښتي (په مرتبه یا په ښایست یا په بې پروایی له خوراکه)، یا چې نشئ تاسې له تل پاتېکېدونکو (په جنت کې). او سخت قسم یې وکړ دوی ته (په نامه د الله) چې بېشکه زه تاسې دواړو ته خامخا له (دوستانو) نصیحت کوونکو څخه یم. پس راکوز کړل (ابلیس) دوی دواړه په فرېب (او په وسوسه په دې دروغ قسم سره)، نو کله چې وڅکله دغو (دواړو مېوه د دغې ممنوعې) ونې؛ (نو) ښکاره شو دواړو ته غلیظه عورتونه د دوی، او ولګېدل دواړه چې سره نښلولې دوی پر عورتونو خپلو باندې له پاڼو (د ونو) د جنت څخه (چې پټ کړي ځان خپل)، او نداء (غږ) وکړ دوی ته رب د دوی (داسې) چې آیا ما نه وئ منع کړي تاسې له (خوراکه د) دغې ونې څخه، او (نه وو) ویلي ما تاسې ته (چې پام وکړئ پوه شئ) چې بېشکه شیطان تاسې دواړو ته دښمن دی ښکاره؟ ! (بلکه منع کړي مو وئ، او ویلي مو وو تاسې ته).

تفسیر: ﴿فَلَمَّا ذَاقَا الشَّجَرَةَ﴾ الآیه ـ «نو کله چې وڅکله دغو دواړو مېوه د دغې ممنوعې ونې؛ نو ښکاره شول دواړو ته غلیظه عورتونه د دوی»، یعنې د حکم له عُدول څخه جنتي لباس له دوی څخه وویستل شو، ځکه چې جنتي لباس په حقیقت کې د ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوٰى﴾ یو محسوس صورت وو، نو د کوم ممنوع له ارتکابه په هره اندازه چې ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوٰى﴾ ځیرې شوی وي؛ په همغه اندازه به جنتي له لباسه بې برخې کیږي.

الغرض شیطان کوښښ وکړ چې آدم علیه السلام نافرمانی ته واړوي، او په عصیان کې یې اخته او مبتلا کړي، چې د جنت فاخره خلعت د مجازاتو په طریقه ترې وایستل شي.

د ﴿سَوْءَةَ﴾ په لغوي معنی ګانو کې ډېر وسعت شته، د قابیل او هابیل په قصه کې یې ﴿سَوْءَةَ اَخِيْهِ﴾ فرمایلي دي، په حدیث کې «إحدی سوأتک یا مقداد» راغلي دي.

﴿وَطَفِقَا يَخْصِفٰنِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَّرَقِ الْجَنَّةِ﴾: «او ولګېدل دغه دواړه چې سره نښلول یې پر غلیظو عورتونو خپلو باندې له پاڼو د ونو د جنت څخه چې پټ کړي ځان خپل»، یعنې بربنډ شول او له ډېر شرم او حیا یې په پاڼو سره خپل بدن پټولو، له دې نه معلومیږي: اګر که د انسان د پیدا کېدلو په وخت کې لوڅ لغړ وي، مګر فطري حیا د دې خبرې مانع ده، چې همغسې لوڅ پوڅ پاتې شي.

قَالَا رَبَّنَا ظَلَمْنَآ أَنفُسَنَا وَإِن لَّمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴿۲۳﴾ قَالَ ٱهْبِطُوا۟ بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ وَلَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَٰعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿۲۴﴾

نو وویل دواړو (یعني آدم او حواء): ای ربه څمونږ! ظلم کړی دی مونږ پر نفسونو (ځانونو) خپلو، او که مغفرت ونه کړې ته او رحمت (مهرباني) ونه کړې ته پر مونږ؛ نو خامخا شو به مونږ هرومرو (خامخا) له زیانکارانو. وفرمایل (الله) چې کوز شئ (له جنته) حال دا چې ځیني ستاسې ځینو نورو ته به دښمن یئ، او (مقرر دی) تاسې ته په ځمکه کې ځای د هستوګنې او (اسباب) د نفع آخیستلو تر وخته (د مرګ) پورې.

تفسیر: د مفسرینو په نزد دا خطاب آدم او حواء علیهما السلام او لعین ابلیس ګردو (ټولو) ته دی، ځکه اصلي عداوت آدم او ابلیس سره لري، او د دوی د عداوت ډګر څمونږ دغه ځمکه ګرځولې شوې ده، چې خلافت یې آدم علیه السلام ته سپارلی شوی وو.

قَالَ فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ وَمِنْهَا تُخْرَجُونَ ﴿۲۵﴾

وفرمایل (الله) چې په دې ځمکه کې به ژوندون کوئ تاسې او په همدغې ځمکې کې به مرئ تاسې (او خښیږئ)، او له همدغې ځمکې څخه به را ایستل کیږئ تاسې (په قیامت کې جزا ته).

تفسیر: یعنې عموماً ستاسې اصلي او معتاد مسکن همدغه ځمکه ده، که د خرق عادت په ډول کوم یو کله تر یوې معیّنې مودې له دې ځایه پورته کړی شي، لکه مسیح علیه السلام نو هغه له دغه آیت سره منافي نه دی، آیا کوم سړی د څو ورځو یا ګړیو له مخې له ځمکې څخه جلا (جدا) او په کومه الوتکه کې مسافرت وکړي، یا هملته مړ شي، نو آیا هغه به د ﴿فِيهَا تَحْيَوْنَ وَفِيهَا تَمُوتُونَ﴾ څخه مخالف وي؟ ځکه چې دی په دغه وخت کې پر ځمکه نه دی، په بل ځای کې داسې ارشاد دی، چې ﴿مِنْهَا خَلَقْنَٰكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَىٰ ﴿۵۵﴾﴾ نو هغه سړی چې په ځمکه کې مړ او په ځمکې کې خښ نشي، هغوی به څرنګه په ﴿وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ﴾ کې داخل شي؟ معلومه شوه چې داسې قسم قضایا د کلیې په ډول نه دي استعمال شوي.

يَٰبَنِىٓ ءَادَمَ قَدْ أَنزَلْنَا عَلَيْكُمْ لِبَاسًا يُوَٰرِى سَوْءَٰتِكُمْ وَرِيشًا ۖ وَلِبَاسُ ٱلتَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ خَيْرٌ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ ءَايَٰتِ ٱللَّهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿۲۶﴾

ای ځامنو د آدم! په تحقیق نازل کړی (لیږلی) دی مونږ پر تاسې لباس (کالي) چې پټوي عورتونه ستاسې، او (درلیږلی مو دی لباس د ښایست او) د زینت کالي، او لباس (کالي) د تقوی (چې خلاصې پرې راځي له عذابه) دغه (لباس د تقوی) خیر (بهتر، ډېر غوره) دی (له نورو)، دغه «رالیږل د پوښاک) له آیتونو (علامو د رحمت فضل قدرت) د الله دی لپاره د دې چې دوی پند واخلي (غور وکړي، او قدر د دې نعمت وپیژني).

تفسیر: له ﴿أَنزَلْنَا﴾ څخه مراد د مادې او نورو پیدا کېدل او د هغې د جوړولو د تدبیر ښوول دي، اګر که د ﴿أَنزَلْنَا﴾ لفظ ډېر ځلې په داسې ځایونو کې ویل کیږي؛ چې یو شی له پاسه ښکته خوا ته لیږل یا راوړل کیږي، مګر ډېر ځلې له هغه څخه دغه مکاني فوق او تحت نه وي مراد، بلکه هغه مرادیږي چې د مرتبې په اعتبار پورته وي، او په هغه شي چې د هغه له خوا ښکته کسانو ته ورکول کیږي؛ د همدغه لفظ اطلاق کاوه شي، لکه چې فرمایلي یې دي: ﴿وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ ٱلْأَنْعَٰمِ ثَمَٰنِيَةَ أَزْوَٰجٍ﴾ یا ﴿وَأَنزَلْنَا ٱلْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ﴾.

﴿وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ ذَٰلِكَ خَيْرٌ﴾: «او کالي د تقوی چې دي؛ دغه لباس التقوی ډېر غوره دی له نورو»، يعنې برسېره په دې ظاهري لباس چې په هغه سره د بدن ستر او زينت حاصلېږي، او ځان پرې پټېږي، او ډول او سينګار پرې کېږي؛ يو معنوي لباس هم شته، چې عظيم الشأن قرآن يې ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ﴾ بولي، او د باطني زينت او ښايست وسيله ګرځي، او په هغه سره د انسان هغه باطني کمزوري د ظهور او فعليت درجه نه مومي، چې په ده کې يې استعداد شته، او د خفاء په پرده کې ده، او د ظهور او فعليت په ډګر کې نشي راتلی، او هم دغه معنوي لباس دی چې قرآن کريم په ﴿وَلِبَاسُ التَّقْوَىٰ﴾ سره ياد کړی دی، او د باطني زينت، ښايست او سينګار ذريعه ګرځي، بلکه که غور وکړی شي؛ نو ظاهري بدني لباس هم د همدې باطني لباس د تأمين، تطهير او تنظيف لپاره شرعا مطلوب دی.

﴿ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ﴾ «دغه رالېږل د پوښاك له آيتونو علامو د فضل، رحمت، او قدرت د الله دي لپاره د دې چې دوی پند واخلي، غور وکړي، او قدر د دې نعمت وپېژني، او پرهېز وکړي، له صوري او معنوي بربنډوالي ځخه»، يعنې پر دغو دلائلو غور وکړئ ! او د الله تعالی د قوت او قدرت په انعام او اکرام باندې معترف او شکر ګذار اوسئ.

﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ لَا يَفْتِنَنَّكُمُ ٱلشَّيْطَٰنُ كَمَآ أَخْرَجَ أَبَوَيْكُم مِّنَ ٱلْجَنَّةِ يَنزِعُ عَنْهُمَا لِبَاسَهُمَا لِيُرِيَهُمَا سَوْءَٰتِهِمَآ ۗ إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ ۗ إِنَّا جَعَلْنَا ٱلشَّيَٰطِينَ أَوْلِيَآءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٧﴾

ای ځامنو د آدم ! فرېب در نکړي تاسې ته شيطان لکه چې ايستلي يې دي مور او پلار ستاسې له جنته (په فرېب سره) په دې حال چې ايسته يې له دې دواړو لباس د دوی، لپاره د دې چې وښيي دوی ته غليظه عورتونه د دوی، بېشکه دغه «شيطان»ويني تاسې (هم پخپله) دی او (هم قوم) لښکر د ده له هغې خوا چې نه يې وينئ تاسې، بېشکه مونږ ګرځولي مو دي شيطانان دوستان لپاره د هغو کسانو چې ايمان نه راوړي دوی.

تفسير: دا خراج او نزع اضافت د سبب په لوري شوی دی، يعنې له جنت ځنې د آدم او حواء عليهما السلام د بېلېدو او د دوی نه د لباس ايستلو سبب همدا شيطان شو، نو هوښيار اوسئ چې اوس تاسې تېر نه باسي ! او د ده له مکرونو ځخه تل خبردار اوسئ !.

يعنې هغه دښمن چې مونږ ته له داسې پټوني ځخه ګوري، چې مونږ يې له سره نه وينو؛ نو د هغه حمله سخته خطرناکه او مدافعه يې ډېره ګرانه ده، نو ځکه تاسې ته ښايي چې تل مستعد او بيدار اوسئ !، د داسې دښمن علاج دا دی، چې مونږ د داسې يوه ذات په پناه کې ځای ونيسو، چې دی هغهويني، او هغه دی نشي ليدی: ﴿لَّا تُدْرِكُهُ ٱلْأَبْصَٰرُ وَهُوَ يُدْرِكُ ٱلْأَبْصَٰرَ ۖ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلْخَبِيرُ﴾.

تنبيه: د ﴿إِنَّهُۥ يَرَىٰكُمْ هُوَ وَقَبِيلُهُۥ مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ﴾: قضيه مطلقه ده، دائمه نه ده، يعنې ډېر ځلې داسې وي چې مونږ دوی نشو ليدلی، او دوی مونږ ته ګوري، له دې وينا ځنې دا خبره نه لازمېږي؛ چې په هيڅ وخت کې به هيڅوك او په هيڅ صورت سره وی نشي ليدلی، نو په دغه آيت سره د جنّ له رؤيته په کلي نفي باندې استدلال کول؛ قصور او لنډ ليدل دي.

﴿إِنَّا جَعَلْنَا ٱلشَّيَٰطِينَ﴾ الآيه - «بېشکه مونږ ګرځولي مو دي شيطانان دوستان لپاره د هغو کسانو چې ايمان نه راوړي»، يعنې کله چې دوی له خپلې بې ايمانۍ د شيطانانو رفاقت خپلو ځانونو ته غوره کړ، لکه چې وروسته له دې چې راځي: ﴿إِنَّهُمُ ٱتَّخَذُوا۟ ٱلشَّيَٰطِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ﴾؛ نو مونږ هم په دغه انتخاب کې هيڅ مزاحمت ونه کړ، او هر چا چې دوی د خپل ځان ملګري ګرځولي وو؛ همغه ور ملګري کړل شول.

﴿وَإِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً قَالُوا وَجَدْنَا عَلَيْهَا آبَاءَنَا وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا ۗ قُلْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ ۖ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢٨﴾﴾

او کله چې وکړي دوی کومه فاحشه (ناکاره کار لکه شرک) نو وايي دوی موندلي دي مونږ په دغه (ناکاره کار) پلرونه خپل او الله هم امر (حکم) کړی دی مونږ ته په (کولو د) دې سره، ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې بېشکه الله نه کوي امر (حکم) په فحشاء (ناکاره کارونو)، آیا وايئ (دروغ تړئ) تاسې پر الله باندې هغه شی چې نه پوهېږئ (پرې) تاسې.

تفسیر: یعنې خراب او د بېحیایۍ کار، لکه د نارینه او ښځې بربنډ طواف کول چې د دې آیتونو شان نزول دی، او له هغه څخه سلیم عقل او صحیحه فطرت نفرت کوي (د الله قدّوس) له شانه دا تصور ډېر لرې دی، چې د داسې شیانو تعلیم ورکړي، د ده پاک ذات د پاکۍ او حیا منبع او سرچینه ده، دی به د ګندګۍ، چټلۍ، او بېحیایۍ د کارونو حکم څرنګه ورکوي؟.

أصلاً د بېحیایۍ او بدکارۍ معلمان هغه شیطانان دي؛ چې دوی د خپلو ځانونو رفیقان ګرځولي دي، وګورئ له ګردو څخه پخوا ستاسې مور او پلار د همدغه شیطان له لوري تېروتل، او لوڅ لغړ وګرځېدل، مګر هغوی د شرم او حیاء لامله د ونو پاڼې پر خپلو ځانونو باندې تپلې، نو څرګنده شوه چې بربنډتیا د شیطان له خوا، او د تستر (د ځان پټولو) کوښښ ستاسې د پلار له خوا شوی دی، بیا په بربنډ طواف کولو کې د خپلو پلرونو سند وړاندې کول څرنګه صحیح کېدی شي.

﴿قُلْ أَمَرَ رَبِّي بِالْقِسْطِ ۖ وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ عِندَ كُلِّ مَسْجِدٍ وَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ كَمَا بَدَأَكُمْ تَعُودُونَ ﴿٢٩﴾﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) امر (حکم) کړی دی رب څما په قسط (عدل، انصاف) سره (چې توحید او ښه کارونه دي، نه په افراط نه په تفریط) او (بل الله حکم کړی دی) چې سم واړوئ (برابر کړئ) تاسې مخونه خپل (عبادت د الله ته) په نزد (د وخت) د هر لمانځه، او بولئ (عبادت کوئ) تاسې د ده حال دا چې مطیع خالص کوونکي اوسئ ده ته دین (خپل له عُجب او ریا او هر نقصان څخه)، لکه چې اول ځلې یې پیدا کړي يئ تاسې (له نشت نه) بیا به هم داسې پیدا شئ تاسې (پس له مرګه).

تفسیر: په «روح المعاني» کې «القسط على ما قال غير واحد: العدل، وهو الوسط من كل شيء ـ المتجافي عن طرفي الإفراط والتفريط»، د آیت حاصل داسې شو چې: الله تعالی په هر کار کې پر توسط او اعتدال د پاتې کېدلو، او له افراط او تفریط څخه د ځان ژغورلو (بچ کول) هدایت کوي، نو بیا به په څه شان سره د فواحشو او رذائلو حکم ورکوي؟».

غالبا محقق شیخ الهند «رحمه الله» «مسجد» میمي مصدر ګڼلی او د (سجود) معنی یې ترې اخیستې ده، تجوُّزا یې په لمانځه سره ترجمه کړې دی، او «وجوه» یې په خپلې ظاهري معنی پرېښې دی، یعنې د لمانځه د اداء کولو په وخت کې خپل مخونه سم د کعبې شریفې په لوري وګرځوئ.

مګر ځینې نور مفسرین له ﴿وَأَقِيمُوا وُجُوهَكُمْ﴾ څخه داسې مطلب اخلي، چې د الله تعالی د عبادت په لوري تل په استقامت او له زړه متوجه اوسئ، د ابن کثیر «رحمه الله» په نزد د دې مطلب دا دی چې: «پخپلو عبادتونو سم او مستقیم اوسئ ! او له هغې سمې لارې ځنې چې د محمد «علیه الصلاة والسلام» ده؛ مه کږېږئ !.

د عبادت مقبوليت پر دوه شيانو موقوف دی: (۱) چې خالص د الله تعالی لپاره وي، چې وروسته يې په ﴿وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ﴾ سره يادونه کوي. (۲) چې له هغې مشروعې طريقې سره موافقه وي، چې انبياء او مرسلين عليهم السلام تجويز کړېده، او دلته هغه په ﴿وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ﴾ سره ادا کړی شوې ده، په هر حال په دغه آيت کې د شرعي أحکامو د ګردو (ټولو) هغو أنواعو په لوري اشاره کړی شوې ده، چې د بندګانو له معاملاتو سره متعلق دي، او هغه ټول تر «قسط» لاندې راغلل، او هغه شيان چې په الله تعالی پورې تعلق لري، که «بدني» وي نو په ﴿وَاَقِيْمُوْا وُجُوْهَكُمْ﴾ کې، که «قلبي» وي نو په ﴿وَّادْعُوْهُ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ﴾ کې مندرج دي.

﴿كَمَا بَدَاَكُمْ تَعُوْدُوْنَ﴾: يعنې لکه چې په اول کې الله جل جلاله ستاسې له پيدا کولو څخه عاجز نه وو، همداسې ستاسې له اعادې او بيا ژوندي کولو څخه هم عاجز نه دی، او انسان د استقامت او اخلاص او اعتدال پر لارې تللو ته د دې لامله (له وجې) اړتيا (احتياج) او ضرورت لري، چې وروسته له مرګه بل ژوندون راتلونکی دی، چې په هغه کې د دې موجوده حيات نتائج ور وړاندې کيږي، نو ښايي د هغه «بعث بعد الموت» فکر لا له اوسه وکړی شي !﴿وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾.

فَرِيْقًا هَدٰى وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلٰلَةُ ؕ اِنَّهُمُ اتَّخَذُوا الشَّيٰطِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۳۰﴾

يوې ډلې ته هدايت وکړ (الله په توفيق د ايمان سره او) هدايت يې نه دی کړی بلې ډلې ته چې مقرره شوې ده پر دوی ګمراهي، بېشکه چې دوی نيولي دي شيطانان دوستان (خپل معبودان) بې له الله څخه او ګمان کوي دوی چې بېشکه هم دوی هدايت موندونکي دي (سمې صافې لارې ته او واقع کې داسې نه ده).

تفسير: يعنې پر هغو باندې چې ګمراهي مقرره شوې ده، هغوی هغه خلق دي چې پاک الله يې پرې ايښې، او شيطان يې خپل دوست او رفيق ګرځولی دی، چې د ده په خوله اعتماد او باور کوي، او خبرو ته يې غوږ ږدي، او د تعجب ځای دا دی، چې سره د دې صريحې ګمراهۍ دوی داسې ګومان کوي، چې مونږ پر سمې صافې لارې باندې روان يو، او له مذهبي حيثيته کومه د عمل رويه چې مونږ اختيار کړېده؛ هغه ډېره مناسبه او درسته ده، لکه چې په بل ځای کې يې فرمايلي دي: ﴿اَلَّذِيْنَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا ﴿۱۰۴﴾﴾ (۱۶ جزء د الکهف سورت (۱۰۴) آيت (۱۲) رکوع).

تنبيه: د دې آيت له عمومه ظاهره شوه چې د «معاند کافر» په شان «مخطي کافر» هم چې د خپلې واقعي غلطۍ لامله (له وجې) باطل حق ګڼي؛ په ﴿وَفَرِيْقًا حَقَّ عَلَيْهِمُ الضَّلٰلَةُ﴾ کې داخل دي، که دغه غلط فهمي د پوره فکر او غور نه کولو له وجې وي، يا له دې سببه وي، چې اګر که ده په ښکاره سره خپل پوره قوت، غور، او فکر چلولی دی، خو په مقصد نه دي رسيدلي، ځکه چې پر داسې صريحو حقائقو او واضحو دلائلو د فکر د نه رسېدلو څخه دغه خبره څرګنده ده، چې ده في الحقيقت په استدلال او د خپل فکر په کار اچولو او استعمال کې تقصير کړی دی، ګواکې هغه شيان چې پرې ايمان راوړل د نجات مدار دی؛ دومره روښانه او واضحه دی، چې له هغو څخه انکار غير له عناده او د فکر او تأمل له قصوره بل هيڅ شی نه دی، په هر حال شرعي کفر داسې زهر دي؛ چې که په قصد يا په سهوه په هر ډول سره چې وخوړل شي، د انسان د وژلو لپاره کافي دي، څمونږ د «اهل السنت والجماعت» مذهب همدا دی.

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ وَكُلُواْ وَٱشۡرَبُواْ وَلَا تُسۡرِفُوٓاْۚ إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلۡمُسۡرِفِينَ ﴿٣١﴾

اى ځامنو د آدمه ! واخلئ تاسي زينت (ښايست) خپل په نزد (د وخت) د هر لمانځه (په اغوستلو د پاکو کاليو (جامو) او د عورت ستر) او خورئ او څښئ او اسراف (بې ځايه خرڅ) مه کوئ تاسي، بېشکه چې الله نه خوښوي مسرفان (بې ځايه خرڅ کوونکي).

تفسير: دغه آيتونه د هغو کسانو په رد کې نازل شوي دي، چې د کعبې شريفې طواف به يې په بربنډه کولو، او هغه يې لوی قربت، ثواب، او پرهېزګاري ګڼله، او د اهل جاهليت ځينو کسانو د حج په ورځو کې د سدّ رمق څخه زيات شی نه خوړ، او د غوړيو او نورو دسوماتو استعمال به يې پرېښوده، ځينو به د وزې له غوښې او شودو له استعماله ځان ساته، نو دغه ګرد شيان يې راوښوده چې دا شيان له سره د نېکۍ او تقوی خبرې نه دي، د الله جل جلاله ورکړی شوی لباس (چې په هغه سره ستاسي د بدن تستّر (پټول) او تزيّن (ښايست) په عمل راځي، د عبادت په وخت کې د نورو وختونو په نسبت لا زيات قابل الاستعمال دی، تر څو بنده د خپل الله جل جلاله په دربار کې د ده د ګردو نعمتونو له اثر او ښښو سره حاضر شي، او هر هغه شيان چې الله تعالی د خوراک او پوښاک لپاره درکړي دي، له هغو څخه متمتع شئ ! په دې شرط سره چې اسراف په کې ونه کړئ !.

د اسراف معنی له حده تجاوز، او له مېچه تېرېدل دي، او هغه دوه ډوله دي: لکه چې حلال حرام وګڼې، يا له حلالو تېر له حرامو هم متمتع شي، يا په خوړلو او څښلو کې له حرص او بې تميزۍ څخه کار واخلي، او له اندازې يې زيات وخوري، يا يې بې له اشتهاء وخوري، يا يې نا وخته وخوري، يا دومره لږ وخوري چې د جسماني صحت او قوت عمل لپاره کافي نه وي، يا د صحت مضر شيان استعمال کړي، او غير ذلک.

د اسراف لفظ دغو ګردو امور لره شاملېدی شي، بيځايه خرڅونه هم په اسراف کې شامل دي، د همدې تعميم په لحاظ ځينو اسلافو فرمايلي دي: (جمع الله الطبّ كله في نصف آية) الله تعالی ګرد (ټول) طب په نيم آيت کې سره ټول کړی دی).

قُلۡ مَنۡ حَرَّمَ زِينَةَ ٱللَّهِ ٱلَّتِيٓ أَخۡرَجَ لِعِبَادِهِۦ وَٱلطَّيِّبَٰتِ مِنَ ٱلرِّزۡقِۚ قُلۡ هِيَ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ فِي ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَا خَالِصَةٗ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِۗ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلۡأٓيَٰتِ لِقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ ﴿٣٢﴾

ووايه (اى محمده ! دوی ته) چې چا حرام کړې دی زينت د الله؛ هغه چې ايستلی يې دی لپاره د بندګانو خپلو؟ او (چا حرام کړي دي) پاک لذيذ شيان له رزقه څخه (چې د خوړلو او څښلو دي؟ يعنې دا يو هم نه دی حرام)، ووايه (اى محمده ! دوی ته) چې دغه (زينت او طيبات او نور نعمتونه اصلا) لپاره د هغو کسانو دي چې ايمان يې راوړی دی (او تبعاً دی کفارو ته) په دې ژوندون لږ خسيس کې، حال دا چې خاص (مؤمنانو لره) دی په ورځ د قيامت کې، همدارنګه (لکه دا پاس تفصيل) په تفصيل بيانوو مونږ آيتونه لپاره د (هغه) قوم چې پوهيږي (پرې).

تفسير: يعنې اى محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ! ته دوی ته ووايه چې چا حرام کړی دی هغه زينت د الله جل جلاله چې له جامو وي، که له نورو وي، چې ايستلی دی الله تعالی لپاره د بندګانو خپلو له نباتاتو لکه پنبه او کتان، او له حيواناتو لکه وربښم يا وړی، او له کانونو لکه ځغره، او بل پاکيزه شيان له اقسامو د روزي، که د خوارک وي: لکه غوښې، وازدې، غلې، دانې، يا د څښلو (څکلو) وي: لکه اوبه، شوده، يعنې دا يو هم نه دی حرام.

ووايه اى ځما رسوله ! دغو ته چې دغه زينت او طيبات او نور نعمتونه خاص لپاره د مؤمنانو دي، يعنې هم دوى ته پيدا شوي دي، اما په دنيا كې كفار هم تبعاً ورسره شريك دي، ولې دائمي او ابدي نعمتونه خاص مؤمنانو ته دي بې شريكه په عقبا كې، همداسې چې مونږ دغه مفصل حكم بيان كړ، مفصل بيانوو باقي ټول احكام د دين بالخاصه د حلال او حرام احكام، لپاره د هغه قوم چې پوهيږي او فهمولى شي.

د دنيا ګرد شيان ځكه پيدا شوي دي، چې انسانان له هغو څخه په شرعي او په مناسبه طريقه ګټه واخلي، او د خالق تعالى جل وعلا شأنه په عبادت او وفادارئ او شكر ګذارئ كې مشغول اوسي، په دغه اعتبار د دنيا ټول نعمتونه اصلاً د مؤمنانو او مطيعانو د استفادې لپاره پيدا شوي دي.

هو ! كافران هم د دغو شيانو له استعمال څخه نه دي ممنوع شوي، دوى هم د خپلو دنيوي اعمالو او تدابيرو په اثر له هغو ځنې مفاد حاصلولى شي، بلكه څه وخت چې د ايمان خاوندان په ايماني قوت او تقوى كې كمزوري شي، نو دغه غاصبان په خپلو عملي هلو ځلو كې ظاهراً ډېر بريالي او كامياب په نظر راځي، چې ځينې له هغو ځنې دې د كفارو د فاني اعمالو ثمر وګڼله شي.

قُلْ إِنَّمَا حَرَّمَ رَبِّيَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَالْإِثْمَ وَالْبَغْيَ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٣٣﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشكه همدا خبره ده، چې حرام كړي دي رب ځما فواحش (كبيره ګناهونه چې موجب د لوي عذاب دي) هغه چې ظاهر وي له هغو څخه، او هغه چې باطن وي، (او حرامه كړې يې ده) ګناه (صغيره چې حد نه لري)، او (حرام كړى يې دى) ظلم په ناحقه سره، (بل دا چې) شريك ونيسئ تاسې په الله پورې هغه شى چې نه دى نازل كړى (لېږلى الله) په (شريكولو د) هغه باندې هيڅ برهان (علمي سند)، او (بل دا يې حرام كړى دى چې) ووايئ تاسې پر الله هغه خبرې چې تاسې نه پوهيږئ (پرې).

تفسير: له «اثم» ځنې عامه ګناه مراده ده، او ځينې مخصوصې ګناوې د دې مقام په مناسبت يا د اهميت له سببه بيان فرمايلې شوي دي، او د ځينو په نزد (اثم) هغه ګناه ده؛ چې د هغې تعلق د ګناه كوونكو څخه ما سوا نورو سره نه وي، والله أعلم.

دروغ تړل په الله جل جلاله دا دي؛ چې په تحليل او تحريم او په الحاد د صفات الله او نورو كې داسې خبرې له خپله ځانه جوړې كړي؛ چې بيخي شرعي اساس ونه لري، او بيا د هغو نسبت الله تعالى ته وكړي، لكه چې د فحشاوو په متعلق به كفارو ويل: ﴿وَاللَّهُ أَمَرَنَا بِهَا﴾.

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٤﴾

او هر يوه امت ته يو اجل (نېټه) شته (د مرګ يا د عذاب كه ايمان رانه وړي)، نو كله چې راشي اجل (نېټه) د دوى؛ نه به وروستې كيږي دوى (ترې) يو ساعت، او نه ړومبى كيږي دوى (ترې).

تفسير: په ظاهره سره دا شبهه كيږي، كله چې د وعدې وخت ورسيږي، نو تأخير يې عقلاً ممكن وو، نو ځكه د هغه نفى ضروري شوه، مګر تقديم يې خو عقلاً هم ممكن نه دى، نو د هغه له نفي څخه څه فائده ده؟.

د دې شبهې له سببه مفسّرينو ﴿وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ﴾ عطف په ﴿فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ﴾ منلى دى، او ځينې د ﴿فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ﴾ څخه (قرب) او نژدېوالى مرادوي.

ځما په نزد دغو تکلفاتو ته هیڅ حاجت نشته، په عمومي محاوراتو کې د یوه شي د تاکید ثبوت او قوت لپاره چې په مقابل کې یې دوه خواوې وي؛ ډېر ځله د هغې خوا نفي خو مقصوداً کیږي، چې محتمل الثبوت وي، او د بلې خوا نفي چې لا له پخوا غیر محتمل وي، یواځې د مبالغې، تأکید او تحسین الکلام په ډول استطرادا ذکر کیږي.

لکه چې یو خریدار له دکاندار څخه د یوه شي قیمت د معلومولو لپاره پخپلو خبرو کې وایي: چې د هغه شي په قیمت کې هیڅ زیادت او کمی او لاندې او باندې نشته؟ او هم دغه یې قیمت دی، دکاندار ورته وایي: هو ! خانه !، په دغه ویلې شوي قیمت کې هیڅ زیادت او کمی او لاندې او باندې نشته !او همدغه قیمت یې واجبي او ټاکلی (مقرر) شوی دی، په دغو دواړو محاورو کې مقصود بالذات (کمی) دی، مګر د (زیادت) لفظ یواځې د قیمت د تعیین او تاکید او مبالغې لپاره استطراداً ذکر کړی شوی دی.

دلته هم د دې کلام څخه اصلي غرض همدا دی، چې د الله تعالی وعده هر کله چې ورسیږي، بیا په کې تأخیر نشته، او له سره وروسته کېدونکې نه ده، او یوه شبیه هم په هغه کې د تقدیم او تأخیر امکان واقع کېدونکی نه دی، دلته د «تأخیر» نفي مقصود ده، ځکه چې «تقدیم» لا له پخوا څخه ظاهرُ الانتفاء وو.

هغه انتفاء یواځې د وعدې په ټینګوالي د زور اچولو یو اسلوب دی، یعنې پر الله دروغ تړونکي او د هغه د لوري د حرامو حلال کوونکي او نور متمردین دې د الله تعالی پر دغه تأخیر، مهلت او حلم نه مغروریږي، او نه دې بې فکره اوسي، ځکه چې د هر امت او د هر فرد لپاره د الله تعالی له جانبه یوه ټاکلې (مقرره) موده مقرره شوې ده، هر کله چې د دوی د سزا نېټه او وعده ورسیږي؛ نو بیا هغه خامخا اجرا کېدونکې ده، او له سره وړاندې وروسته کېدونکې نه ده.

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأۡتِيَنَّكُمۡ رُسُلٞ مِّنكُمۡ يَقُصُّونَ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتِي فَمَنِ ٱتَّقَىٰ وَأَصۡلَحَ فَلَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ۝٣٥ وَٱلَّذِينَ كَذَّبُواْ بِـَٔايَٰتِنَا وَٱسۡتَكۡبَرُواْ عَنۡهَآ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَٰلِدُونَ ۝٣٦

ای ځامنو (اولاده) د آدم ! که راشي تاسې ته رسولان له تاسې څخه، چې لولي دوی پر تاسې باندې آیتونه (د کتاب) ځما (یعنې شرعي احکام)؛ نو هر څوک چې ځان وساتي (له تکذیب څخه) او اصلاح (نېک) کړي (عمل خپل)؛ نو نه به وي هیڅ قسم وېره پر دوی باندې، او نه به دوی غمجن کیږي (په نقصان د جزا سره). او هغه کسان چې نسبت یې د دروغو کړی آیتونو ځمونږ ته او کبر (سرکشي کوي) له (قبلولو د) هغو آیتونو؛ همدغه کسان صاحبان (ملګري) د اور د (دوزخ) دي، همدوی به په دغه اور کې تل وي.

تفسیر: ابن جریر د أبو یسار سُلمي «رحمه الله» څخه نقل کړي دي، چې دغه خطاب د ﴿يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ إِمَّا يَأۡتِيَنَّكُمۡ﴾ الآیه ـ ګردو (ټولو) بني آدمانو ته په عالم ارواح کې شوی دی، لکه چې د (اول جزء د البقرې سورت (۳۸) آیت (۴) رکوع) له سیاق څخه معلومیږي: ﴿قُلۡنَا ٱهۡبِطُواْ مِنۡهَا جَمِيعٗاۖ فَإِمَّا يَأۡتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدٗى﴾

الآیه ـ او د ځینو محققینو په نزد «هر کله هر خطاب چې په هره زمانه کې هر قوم ته شوی دی، دا د هغو څخه حکایت دی»، یعنې که الله تعالی په کوم وخت کې له همدغه ستاسې څخه کوم رسول مبعوث وفرمایي، چې د الله تعالی آیتونه تاسې ته آوروي، او په هغو سره تاسې ته ستاسې د پلار اصلي میراث (جنت) د حاصلولو ترغیب او تذکیر درکوي، او د حقیقي مالک د خوشالۍ لارې په کې درښکاره شوي دي؛ نو د هغه مرسته (مدد) او پیروي وکړئ ! او له الله تعالی څخه ووېرېږئ ! او ناکاره کارونه پرېږدئ، او ترې بېزاره شئ ! او صالحه اعمال اختیار کړئ !؛ نو ستاسې مستقبل به بېخي بېخوفه او بې خطره کیږي، او تاسې به داسې یو مقام ته ورسېږئ چې هلته به د عیش او عشرت، امن، سکون، او اطمینان څخه ما سوا بل هیڅ شی نه وي.

هو ! كه څمونو آيتونو ته تاسې د دروغو نسبت وكړ، او د تكبر او لويني له مخو تاسې پرې عمل ونه كړ، او له هدايته ګوښې (بېل) پاتې شوئ؛ نو له اصلي مسكن او آبائي ميراث څخه به بې برخې كېږئ، او د دائمې محرومۍ او ابدي عذاب او هلاكت څنې به ما سوا بل هيڅ شى ستاسې نه په برخه كيږي.

فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ۗ اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ ۗ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ ۙ قَالُوْٓا اَيْنَ مَا كُنْتُمْ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۗ قَالُوْا ضَلُّوْا عَنَّا وَشَهِدُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۳۷﴾

نو څوک دي ډېر ظالم له هغه چا چې له ځانه تړي پر الله باندې دروغ (چې ښځه، ځوی، لور او شريک لري) يا نسبت د دروغو كوي آيتونه د دغه (الله) ته (بلكه نشته بل ظالم)، دغه (مكذبان مفتريان پر الله) وبه رسيږي دوی ته برخه د دوی له هغه ليكل شوي (عمر، رزق، اجل او نور) څخه تر هغه پورې كله چې راشي دوی ته رسولان څمونږ (ملک الموت او أعوان يې)، حال دا چې قبضوي دوی (ارواح د) هغوی وايي (دا ملائکک دې كفارو ته د ملامتۍ په توګه): چېرته دي هغه (معبودان) چې وئ تاسې چې بلل به مو (عبادت به مو كاوه د هغوی) غير له الله (چې اوس دفع كړي عذاب له تاسې؟)، نو وبه وايي دغه (كافران): وركث شول له مونږ (او هيڅ نفعه مو ترې ونه مونده)، او شاهدي به وركړي دوی پر نفسونو (ځانونو) خپلو باندې چې بېشكه دوی وو كافران (په دنيا كې).

تفسير: ﴿اُولٰٓئِكَ يَنَالُهُمْ﴾ الآيه ـ «دغه مكذبان او مفتريان پر الله؛ وبه رسيږي دوی ته برخه د دوی»، يعني په دنيا كې عمر او رزق او نور هر څومره چې مقرر او مقدر دي، يا د دې ځای ذلت او رسوايي چې د دوی لپاره ليكلې شوې ده، هغه ګرد دوی ته رسيدونكي دي، بيا وروسته له مرګه هغه معامله چې له دوی سره كېدونكې ده، د هغې ذكر وروسته له دې نه راځي، كه د ﴿نَصِيْبُهُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ﴾ څنې دنيوي عذاب نه، بلكه اخروي مراد واخيستل شي؛ نو د ﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ﴾ الآيه ـ څخه پر دې تنبيه كيږي، چې د هغه عذاب لـه مباديـو سلسله د دغه دنيوي ژوندانه پـه آخري شېبو كې شروع كيږي.

﴿حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا يَتَوَفَّوْنَهُمْ﴾ الآيه ـ «تر هغه پورې چې راشي دوی ته رسولان څمونږ چې قبضوي ارواح د دوی»، يعني كله چې پرښتې په ډېره سختۍ د دوی روح قبضوي، او په بد صورت يې بيايي، نو دوی ته ويلې كيږي: چې پرته له الله تعالى څنې هغه شيان چې تاسې بلل هغوی چېرې دي؟ چې اوس ستاسې په داد او فرياد نه درسيږي؟ او ستاسې خبر نه اخلي؟ هغوی در وبولئ ! چې تاسې له دې مصيبت څخه وژغوري (وساتي) ! په دې وخت كې به كفار اقرار كوي، او په دغه اقرار كولو به اړ (محتاج) كيږي، چې مونږ ډېره سخته غلطي كړېوه، چې مونږ داسې شيان خپل معبودان او مستعان ټاكلي (مقرر) كړي وو، چې هغوی د دې كار وړ او مستحق نه وو، او نن څمونږ په دغه مصيبت كې د هغوی هيڅ سراغ او پته نشته، خو دغه بې وخته اقرار او ندامت دوی ته هيڅ ګټه (فائده) او نفع نه رسوي، او پر دوی داسې حكم صادريږي، ﴿ادْخُلُوْا فِيْٓ اُمَمٍ﴾ الآيه.

باقي هغه چې په نورو مواضعو كې راغلي دي، چې دوی به د خپل كفر او شرک څخه انكار كوي، د دې آيت سره منافي نه ده، ځكه چې د قيامت مواقف او احوال سره بېل بېل او جلا جلا (جدا جدا) وي، او جماعتونه به هم بېشماره ولاړ وي، په يوه ځای كې د يوه موقف او جماعت بيان راځي، او په بل ځای كې د بل جماعت او موقف ذكر كيږي.

قَالَ ادْخُلُوا فِيٓ أُمَمٍ قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِكُم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ فِي النَّارِ ۖ

وبه فرمايي (الله يا پرښته په قيامت کې دوی ته) چې ننوځئ په هغو امتونو (د کفارو) کې چې په تحقيق تېر شوي دي پخوا له تاسې له (کفارو د جن) پيريانو او له (کفارو د) انسانانو په اور (د دوزخ) کې.

**تفسير:** مطلب يې دادی چې: «تاسې هم د پخوانيو کفارو په ملګرتيا د دوزخ اور ته ننوځئ» !، يعنې هغه وړاندې او وروسته ګرد کفار به په همدغه دوزخ کې داخلېږي.

كُلَّمَا دَخَلَتْ أُمَّةٌ لَّعَنَتْ أُخْتَهَا ۖ

هر کله چې ننوځي (د دوزخ اور ته) يو امت نو لعنت به وايي دغه امت پر هغه بل وړاندې امت چې په مثل د ده وو (د کفر په خاص مشرب کې)،

**تفسير:** يعنې په دې مصيبت کې يو له بله سره همدردي به چېرې وي، بلکه دوزخيان يو پر بل باندې لعن او طعن وايي، او مسخرې کوي او ملنډې سره وهي، ښايي چې تابعان به خپلو سردارانو ته وايي چې: «د الله لعنت دې پر تاسې وي، چې تاسې مونږ هم د خپلو ځانونو سره په عذابونو او ربړونو (تکليفونو) کې ډوب کړو»، سرداران به خپلو اتباعو ته وايي: «ای ملعونانو ! که مونږ په کنده کې ولوېدو، ستاسې خو سترګې وې، نو تاسې ولې د ړندو په شان په مونږ پسې رالوېدئ» وغير ذلک.

حَتَّىٰٓ إِذَا ادَّارَكُوا فِيهَا جَمِيعًا قَالَتْ أُخْرَاهُمْ لِأُولَاهُمْ رَبَّنَا هَٰٓؤُلَآءِ أَضَلُّونَا فَـَٔاتِهِمْ عَذَابًا ضِعْفًا مِّنَ النَّارِ ۖ قَالَ لِكُلٍّ ضِعْفٌ وَلَٰكِن لَّا تَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾

تر هغه پورې کله چې يو ځای شي دوی په دې (اور) کې ټول؛ نو وبه وايي وروستني د دوی (يعنې تابعان) په (باب دهغو) ړومبنيو (متبوعانو) خپلو کې (الله ته چې) ای ربه ځمونږ ! دغو (مشرانو متبوعانو) ګمراه کړي وو مونږه؛ نو ورکړه دوی ته عذاب دوچند (ځمونږ) له اوره (د دوزخ)، وبه فرمايي الله چې: دی لپاره د هر يوه دوچند (عذاب)، ليکن نه پوهېږئ تاسې (پرې او نه خبرېږئ د يو بل له عذاب نه).

**تفسير:** يعنې په يوه حساب د پخوانيو د ګناهونو عذاب دوچند شو، چې هم پخپله دوی ګمراهان شوي وو، او هم يې راتلونکو لره لارې جوړې کړې، او په بل صورت د وروستنيو ګناه دوه چنده شوه، چې دوی په دغسې حال کې ګمراهان شول، چې د پخوانيو امتونو احوال د دوی په مخ کې ښکاره پراته وو، او دوی ترې هيڅ پند او عبرت نه اخيست.

يا ځرنګه چې د هر دوزخي احوال له خپلو درجو سره سم وخت په وخت زياتيږي، نو ځکه يې وفرمايل چې د هر يوه عذاب به پرله پسې برابر دوه چنده کيږي، او لا به پسې زياتيږي، اوس د تعذيب په ابتداء کې تاسې د تعذيب له انتهاء ځخه بې خبره يئ، يعنې د پخوانيو د عذاب د دوچند کېدلو ځخه به وروستنيو ته څه راحت، هوسايي (آرام) او شفاء نه په برخه کيږي.

دا تقرير به په هغه صورت کې موافق راځي چې د ﴿لِكُلٍّ ضِعْفٌ﴾ ځخه دواړه فرقې مرادې شي.

خو د «ابن کثير رحمه الله» په نزد په دې آيت کې وروستنيو ته اطلاع ورکړی شوې ده، چې بېشکه مونږ له پخوانيو ځخه هر يوه ته سم د هغه له درجې سره دوه چنده عذاب مقرر کړی دی، لکه چې په بل ځای کې يې خبر ورکړی

دی: ﴿اَلَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِیْلِ اللّٰهِ زِدْنٰهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا یُفْسِدُوْنَ﴾ (۱۴ جزء د النحل سورت (۸۸) آیت (۱۲) رکوع) ﴿وَلَیَحْمِلُنَّ اَثْقَالَهُمْ وَاَثْقَالًا مَّعَ اَثْقَالِهِمْ وَلَیُسْـَٔلُنَّ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ عَمَّا كَانُوْا یَفْتَرُوْنَ﴾ (۲۰ جزء د العنکبوت سورت (۱۳) آیت (۱) رکوع)، ﴿لِیَحْمِلُوْۤا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً یَّوْمَ الْقِیٰمَةِ وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِیْنَ یُضِلُّوْنَهُمْ بِغَیْرِ عِلْمٍ اَلَا سَآءَ مَا یَزِرُوْنَ﴾ (۱۴ جزء د النحل سورت (۲۵) آیت (۳) رکوع).

وَقَالَتْ اُوْلٰىهُمْ لِاُخْرٰىهُمْ فَمَا كَانَ لَكُمْ عَلَیْنَا مِنْ فَضْلٍ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ﴿۳۹﴾

او وبه وايي هغه ړومبني (متبوعان) د دوی په حق د وروستنيو (تابعانو) د دوی کې: چې پس نه وو تاسو ته پر مونږ باندې هيڅ فضل (بهتري په تخفيف د عذاب کې، او مونږ او تاسې برابر يو په کفر کې) نو وڅکئ تاسې عذاب په سبب د هغو کارونو چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنيا کې له شرك او کفر څخه).

تفسير: يعني څمونږ د سزا د زياتونې د خواهش څخه تاسې ته څه په لاس درغله؟ آيا ستاسې په عذاب کې څه تخفيف راغی؟ نه، تاسې هم د خپلو چارو نتيجې وګالئ (برداشت کړئ) او خوند يې وڅکئ !.

اِنَّ الَّذِیْنَ كَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا وَاسْتَكْبَرُوْا عَنْهَا لَا تُفَتَّحُ لَهُمْ اَبْوَابُ السَّمَآءِ وَلَا یَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ حَتّٰى یَلِجَ الْجَمَلُ فِیْ سَمِّ الْخِیَاطِ وَكَذٰلِكَ نَجْزِی الْمُجْرِمِیْنَ ﴿۴۰﴾

بېشکه هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آيتونو څمونږ ته او تکبر کوي (له قبول) د هغو؛ وبه نه پرانيستلی شي دوی ته وَرُونه د آسمان (چې پورته يوړی شي نېك عملونه او ارواح د دوی) او نه به داخل شي دوی جنت ته، تر هغه پورې چې ننوځي اوښ په سوري د ستنې کې، او همداسې (لکه جزا د متکبرانو) جزا ورکوو مونږ مجرمانو (کافرانو) ته.

تفسير: يعني نه په ژوند کې د دوی اعمالو ته آسماني قبول او رفعت حاصل دی، او نه وروسته له مرګه د دوی ارواحو ته اجازه شته، چې دآسمان په لوري وخيژي، په حديث کې راغلي دي چې: «د کافرانو اعمال او ارواح د آسمان له جانبه د «سجّين» په لوري شړل کيږي، چې تر څمکې لاندې دی، او د مؤمنانو اعمال او ارواح تر اومه آسمانه «علیّين» پورته خيژي، مفصل احوال دې د احاديثو په کتابونو کې ولوستل شي !.

﴿حَتّٰى یَلِجَ الْجَمَلُ فِیْ سَمِّ الْخِیَاطِ﴾ «تر هغه پورې چې ننوځي اوښ په سوري د ستنې کې»، دا يې د «تعليق بالمحال» په ډول وفرمايل، د هرې ژبې په محاورو کې داسې امثال شته، چې په کې د يوه شي محالتوب په بل محال شي باندې معلق وي، او دا ترې ظاهريږي.

همغسې چې هغه شی لا ممکن دی؛ دغه شی هم ناممکن دی، يعني لکه چې دغه خبره د کېدلو نه ده، چې اوښ سره له خپل لوی جسامت د ستنې په سوم کې سره د هغه د وړوکوالي او صغارت ننوځي؛ همداسې د دغو مکذبينو او متکبرينو په جنت کې داخلېدل محال دي، ځکه چې حق تعالی په جهنم کې د دوی د «خُلود» خبر راکړی دی، او په علم الله کې هم دا سزا دوی ته ټاکلې (مقرره) شوې ده، نو بيا د الله تعالی د علم او اخبار څخه مخالف کار څرنګه واقع کېدی شي؟ !

لَهُمْ مِّنْ جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَّمِنْ فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ وَكَذٰلِكَ نَجْزِی الظّٰلِمِیْنَ ﴿۴۱﴾

مقرر دي دوی ته له دوزخ څخنې فرش، او وي به د پاسه د دوی آغوستنې (پردې د اور)، او همداسې (لکه جزاء د دې خلقو) جزا ورکوو مونږ ظالمانو ته.

تفسير: يعنې له هرې خوا به ترې اور چاپېر وي، او له هيڅ لوري او په يوه ډډه به هم دوی ته راحت او هوسايي (آرام) نه ورسيږي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٤٢﴾

او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی، او کړي يې دي ښه (عملونه) تکليف نه فرمايو (بار نه آچوو) په هيڅ نفس مګر په قدر د طاقت د ده، دغه (مؤمنان) صاحبان (ملګري) د جنت دي، همدوی به په هغه (جنت) کې تل وي.

تفسير: ﴿لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ جمله معترضه ده، چې په دې سره يې په منځ کې تنبيه وفرمايله، چې ايمان او صالح عمل چې پرې دومره عظيم الشأن صله مرحمت کيږي، داسې کوم مشکل شی نه دی، چې د انسان له طاقته وتلی وي، يا يې دا مطلب چې له هر انسان څخې دومره صالح عمل مطلوب دی، چې د هغه طاقت او قدرت وي، له هغه څخه زياته مطالبه نه کيږي.

وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ

او وبه باسو مونږ هغه چې په سينو د دغو (جنتيانو) کې دی له کينو څخه.

تفسير: ﴿وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ﴾ څخه يا خو داسې مراد دی، چې د جنتيانو په منځ کې په جنتي نعمتونو کې يو له بله سره هيڅ قسم شک، شبهه، حسد، رخه (کينه) نه وي، او هر يو به خپل ځان او نور جنتيان داسې ګوري؛ لکه چې يو ورور خپل بل خوږ ورور ګوري، او په ليدلو به يې خوشاليږي، په خلاف د دوزخيانو چې دوی به د هغه مصيبت په وخت کې يو بل ته پيغور ورکوي، او لعنتونه او کنځلې به کوي، لکه چې پخوا وليکل شو، يا به مراد داسې وي؛ چې د داسې صالحانو په منځ کې په دنيوي ژوندون کې که پر کومه خبره کوم خپګان او اندېښنه پيښه شوي وي، او يو د بل په نسبت څه انقباض او تأثر لري؛ هغه ګرد به دجنت له ننوتلو څخه پخوا د دوی له زړونو څخې ايستل کيږي، هلته به ګرد يو د بل په نسبت سليم الصدر او خوښ وي، لکه چې علي رضي الله عنه د ځان او خپلو مخالفينو په هکله فرمايلي وو.

تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ ۖ وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي هَدَانَا لِهَٰذَا وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللَّهُ ۖ لَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُ رَبِّنَا بِالْحَقِّ ۖ

بهيږي به له لاندې د (ماڼيو او ونو د) دوی ويالې، او وايي به دغه (جنتيان): ګردې (ټولې) ثناوې او احسانات خاص الله لره دي، هغه (الله) چې برابر يې کړو مونږ دې (مقام) ته، او نه وو مونږ پخپله چې موندلې مو وی دا لاره؛ که نه وو هدايت کړی (لار ښوولې) مونږ ته الله، په تحقيق راغلي وو رسولان د رب څمونږ په حقه سره.

تفسير: يعنې د الله تعالی په مهرباني او توفيق او د رسولانو په سمه لار ښوونه او لاس نيونه مونږ دغه اعلی مقام ته رسيدلي يو، او دغه مرتبه مو په برخه شوې ده، که نه مونږ چېرې او د غه لوړې مرتبې چېرې.

وَنُودُوا أَن تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٤٣﴾

او آواز به وکړ شي دغو (جنتيانو) ته داسې چې دغه جنت په ميراث (وړيا) درکړی شوی دی تاسې ته په سبب د هغه چې وئ تاسې چې کول به مو (له حسناتو په دنيا کې).

تفسیر: په حدیث کې راغلي دي چې: «هیڅوک لره خپل عمل په جنت کې نه داخلوي»، د دې مطلب داسې دی، چې د جنت د داخلېدو حقیقي عوض عمل نه دی، او فقط ظاهري سبب یې ګاڼه شي، ځکه چې د جنت د دخول حقیقي سبب د الله تعالی کامل رحمت دی، لکه چې په همدغه حدیث کې راغلي دي، او د «إلا أن یتغمدني الله برحمته» له الفاظو ځنې ظاهرېږي.

هو ! پر بنده د الله تعالی د رحمت نزول هغومره کېږي، چې د عمل روح په کې موجود وي، شیخ الهند «رحمه الله» په تل فرمایل: «دغه ګاډی د الله تعالی په قدرت سره درومي، او عمل د هغو علائمو او اشاراتو په شان دی، چې په هغو سره دغه ګاډی حرکت کوي او درېږي».

ځینې مفسرین د دې آیت ترجمه داسې هم کوي: «او غږ به وکړ شي جنتیانو ته چې دا جنت درکړی شوی دی تاسې ته وېړیا لکه میراث چې وېړیا وي، یا د کافرانو برخه جنت هم تاسې ته میراث پاتې شو، لکه چې ستاسې برخه دوزخ هم دوی ته پاتې شو، په سبب د هغو اعمالو چې وئ تاسې چې کول به تاسې په دنیا کې، چې هغه استقامت او مواظبت وو په اوامرو او اجتناب وو له نواهیو ځنې.

وَنَادَىٰٓ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَنَّةِ أَصۡحَٰبَ ٱلنَّارِ أَن قَدۡ وَجَدۡنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقّٗا فَهَلۡ وَجَدتُّم مَّا وَعَدَ رَبُّكُمۡ حَقّٗاۖ قَالُواْ نَعَمۡۚ فَأَذَّنَ مُؤَذِّنُۢ بَيۡنَهُمۡ أَن لَّعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٤٤ ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَهُم بِٱلۡأٓخِرَةِ كَٰفِرُونَ ۝٤٥

او غږ به وکړي صاحبان د جنت (دخپه کولو لپاره) صاحبانو د اور ته داسې چې: په تحقیق مونده کړې مونږ هغه (ثواب) چې وعده کړې وه رب له مونږ سره ځمونږ په حقه (رښتیا) سره، نو آیا وموند تاسې (هم) هغه (عذاب) چې وعده کړې وه رب ستاسې په حقه (رښتیا) سره؟، (نو) وبه وایي دوزخیان چې هو ! (هغه مو همغسې بیا مونده !)، نو غږ به وکړي یو غږ کوونکی په منځ د دغو (جنتیانو او دوزخیانو) کې داسې چې: وي دې لعنت د الله په ظالمانو (کافرانو) باندې. هغه ظالمان چې اړوي دوی (خلق) له لارې د الله، او لټوي دوی په دغې (لارې) کې کوږوالی (عیب)، او همدوی په (راتلو د) آخرت (قیامت) باندې کافران (منکران) وو.

تفسیر: په دغو آیتونو کې د هغو مکالماتو او مخاطباتو ذکر دی، چې د جنتیانو او دوزخیانو یا د دوی دواړو او أصحاب الأعراف په منځ کې سره کېږي، د ړومبنیو او وروستنیو خبرو او اترو څخه چې د «أصحاب الجنة» او د «أصحاب النار» په منځ کې د دې لوري یا د هغه لوري کېږي؛ له ورا ښکارېږي چې دغه مخاطبات د جنت یا د دوزخ له ننوتلو ځنې وروسته کېږي، نو ځکه د کلام نظم داسې اقتضاء لري، چې د «أصحاب الأعراف» ضمني او منځنۍ خبرې او اترې هم وروسته له هغه ومنلی شي، په هر حال جنتیان د جنت له رسېدلو وروسته پر خپل حال د خوشالۍ اظهار کوي، او د دوزخیانو د تقریع او ترټلو او نکایت او شرمولو لپاره به وایي: «هغه ټه وعدې چې الله تعالی دخپلو رسولانو په ژبو له مونږ سره فرمایلې وې، چې ایمان راوړونکو ته دائمي نعیم وررسېږي، نو مونږ هغه په رښتیا او ښې سمې وموندلې، ای أهل جهنم ! تاسې ووایئ چې ستاسې پر کفر او عصیان کومې وېرې او تهدیدونه چې درکاوه کېدل، آیا تاسې هم هغه رښتیا او صحیح وموندل؟».

ظاهر دی چې کفار په ځواب کې پرته له (هو !) څخه بل هیڅ شی نشي ویلی، په دغه وخت کې به د الله تعالی له لوري یو «منادي» ودرېږي، او داسې غږ به کوي: «اګر که ګناهګاران ډېر دي» مګر د الله تعالی لوی لعنت او ډېره ترټنه پر هغو ظالمانو ده، چې دوی پخپله هم ګمراهان او د آخرت له انجامه بیخي بې فکره وو، او هم نور به یې د حق لارې

څخه بې لارې کول، او پخپلو کړو بحثونو سره به شپه ورځ په همدغه فکر کې وو؛ چې سمه او صافه لاره هرومرو (خامخا) کږه او خرابه معرفي او ثابته کړي.

وَبَيْنَهُمَا حِجَابٌ ۚ وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمَاهُمْ ۚ وَنَادَوْا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ ۚ لَمْ يَدْخُلُوهَا وَهُمْ يَطْمَعُونَ ﴿٤٦﴾

او په منځ کې د دغو دواړو (جنت او دوزخ یو دیوال) پرده ده، او پر اعراف باندې به سړي وي چې پېژني دوی هر یو (جنتي او دوزخي) په علامو د دوی سره، او غږ به وکړي دغه (أعرافیان) صاحبانو د جنت ته داسې چې: سلام دې وي پر تاسې باندې، حال دا چې داخل شوي به نه وي دغه (أعرافیان) جنت ته، او دوی به طمع (امید د جنت) لري.

تفسیر: د «حجاب» معنی پرده او پناهي ده، او دلته له پردې څخه دیوال مراد دی، چې د حدید په سورت کې په دې تصریح شوې ده: ﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ﴾ دغه دیوال به داسې یو مانع او حاجز وي، چې د جنت له خوندونو او لذتونو څخه دوزخیان بې برخې کوي، او د دوزخ له عذابونو، ربړونو (تکلیفونو) او کلفتونو څخه جنتیان بې خبره کوي، چې د هغه تفصیلي علم مونږ نه لرو.

﴿وَعَلَى الْأَعْرَافِ رِجَالٌ يَعْرِفُونَ كُلًّا بِسِيمَاهُمْ﴾ الآیه - «أي علی أعراف ذلك الحجاب رجال»، یعني دا الف لام عوضي دی، «أعراف» جمع د «عرف» ده، چې د هر شي سر ته وایي، معنی یې دا چې وي به په کنګرو د دې قلعې باندې سړي چې دوی به جنتیانویني او هم دوزخیان، او پېژني به جنتي په تک سپین نوراني مخ د ده سره، او دوزخي په تک تور ظلماني مخ د هغه سره، ګواکې د دغه منځني دیوال د لوړې څوکې نوم «أعراف» دی.

د «أعراف أصحاب» څوک دي؟ قرطبي «رحمه الله» پر دغه موضوع دولس أقواله نقل کړي دي، څمونږ په نزد راجح قول همغه دی، چې له حذیفه، ابن عبّاس، ابن مسعود رضي الله تعالی عنهم أجمعین غوندې جلیل القدرو أصحابو اونورو اکثرو أسلافو او أخلافو څخه منقول دی، یعنې «د أعمالو له وزن کېدلو څخه وروسته جنتي هغه دی، چې د ده «حسنات» ډېر وخیژي، او دوزخي هغه دی چې «سیئات» یې زیات شي، او هغه کسان چې حسنات اوسیئات یې مساوي او یو برابر څرګند شي، هغوی به د «أعراف» أصحاب کیږي».

له روایاتو څخه معلومیږي، چې بالآخره «أصحاب الأعراف» هم جنت ته ځي، او برسېره په هغه دا خبره له دغې مسئلې څخه هم فهمیږي، کله چې هغه ګناهګاران مؤمنان چې د دوی سیئات پر حسناتو غالب او د هغه په اثر په دوزخ کې غورځول کیږي، او دوی وروسته د خپلو سزاوو د ګاللو (تېرولو) څخه بېرته جنت ته بیول کیږي، نو «أصحاب الأعراف» چې د دوی حسنات او سیئات سره برابر دي، ښایي له دوی څخه ړومبی جنت ته لاړ شي.

وَإِذَا صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ تِلْقَاءَ أَصْحَابِ النَّارِ قَالُوا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا مَعَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٤٧﴾

او کله چې وګرځول شي سترګې د دغو «أعرافیانو او وګوري» په لوري د صاحبانو (ملګرو) د اور؛ نو وبه وایي دغه (أعرافیان له ډېره هیبته): ای ربه څمونږ! مه ګرځوه (مه یو ځای کوه) مونږ سره له قومه ظالمانو (کافرانو).

تفسیر: خرنګه چې أعرافیان د جنت او دوزخ په منځ کې اوسیږي، نو د دوی احوال د خوف او رجاء په منځ کې وي، کله چې جنتیانو ته ګوري؛ نو خوشالیږي، او هیله او امید یې پیدا کیږي، او کله چې پر دوزخیانو د دوی سترګې ناڅاپه ولګیږي؛ نو له الله تعالی څخه ویریږي، او ترې پناه غواړي، څو دوی د دوزخیانو په ډله کې ونه غورځولی شي.

په ﴿صُرِفَتْ أَبْصَارُهُمْ﴾ کې اشاره دې ته ده چې أعرافيان عمدا دوزخيانو ته نه ګوري، بلکه بې اختياره به يې پرې نظر واقع کيږي.

﴿وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْأَعْرَافِ رِجَالًا يَعْرِفُونَهُم بِسِيمَاهُمْ قَالُوا مَا أَغْنَىٰ عَنكُمْ جَمْعُكُمْ وَمَا كُنتُمْ تَسْتَكْبِرُونَ﴾ ﴿۴۸﴾

او غږ به وکړي صاحبان د اعراف هغو سړيو ته (له دوزخيانو) چې پېژني به دا (اعرافيان) هغوی په علائمو د (ظلماني مخونو د) هغو سره، وبه وايي دا (أعرافيان دوزخيانو ته): هيڅ دفع ونه کړه له تاسې ډېر والي (د مال يا د رجالو) ستاسې او نه هغه چې وئ تاسې لويي به مو کوله (له حقه).

**تفسير:** يعني برسېره په دې چې په دوزخ کې معذب کيږي، د دوی په څېرو کې به د دوزخيتوب علامې هم ښکاري.

يا يې دا مطلب دی، چې دوی به داسې خلق وي، چې د «أصحاب الأعراف» سره پېژندګلوي لري، او په دنيا يې ليدلي وي، نو څکه کله يې چې په هغه ځای کې ووينې؛ نو په څېره يې پېژني، او داسې به وايي دوی ته چې: «هيڅ دفع ونه کړه له تاسې څخه ډېروالي د مال يا د رجالو ستاسې، او نه هغه چې وئ تاسې چې کبر، لويي به کوله تاسې له حقه»، يعني د دې مصيبت په وخت کې ستاسې هغه ملاتړي جماعتونه او ډلې چېرې لاړې؟ او په دنيا کې هغه ځانمني او لويي چې تاسې کوله، هغه اوس څه شوه؟

﴿أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ ۚ ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلَا أَنتُمْ تَحْزَنُونَ﴾ ﴿۴۹﴾

(وبه وايي أعرافيان چې) آيا دغه (په جنت کې) هغه (ضعيفان مسلمانان) دي چې قسمونه به خوړل تاسې (په دنيا کې) چې وبه نه رسوي دوی ته الله رحمت خپل (او اوس په جنت او رحمت کې دي، او الله هغو ته فرمايلي دي چې) ننوځئ جنت ته چې نه به وي هيڅ وېره پر تاسې باندې او نه به تاسې غمجن کېږئ.

**تفسير:** په دغه سره د «أهل الجنت» په لوري اشاره کوي، او دوزخيانو ته به ويلې کيږي؛ چې هغه ګوډ مات او له کاره وتلي مساکين او ضعيف الحال کسان چې تاسې هغوی حقير او خوار او اکرب ګڼل، او داسې به مو ويل چې: «آيا د پاک الله مهرباني په ګرد (ټول) عالم کې فقط په همدغسې کسانو کيږي ! ﴿أَهَٰؤُلَاءِ مَنَّ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّن بَيْنِنَا﴾ الآيه -» نن هغو ته وګورئ چې د ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ لَا خَوْفٌ عَلَيْكُمْ﴾ الآيه - مصداق ګرځيدلي دي، يعني ننوځئ په جنت کې بې له خوف او وېرې، حال دا چې تاسې په دغه عذاب کې اخته او مبتلا يئ.

ځينې مفسرين ﴿ادْخُلُوا الْجَنَّةَ﴾ د أعرافيانو مقوله بولي، او ځينې يې د الله تعالی مقوله ګڼي، چې الله تعالی به أعرافيانو ته فرمايي، چې ننوځئ ای أعرافيانو جنت ته الخ.

﴿وَنَادَىٰ أَصْحَابُ النَّارِ أَصْحَابَ الْجَنَّةِ أَنْ أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ ۚ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ حَرَّمَهُمَا عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ ﴿۵۰﴾ ﴿الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا ۚ فَالْيَوْمَ نَنسَاهُمْ كَمَا نَسُوا لِقَاءَ يَوْمِهِمْ هَٰذَا وَمَا كَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ﴾ ﴿۵۱﴾

او غږ به وکړي صاحبان د اور صاحبانو د جنت ته داسې چې: راتوی کړئ تاسې پر مونږ باندې له اوبو نه، يا (راواچوئ) له هغو شيونو چې روزي کړې دي تاسې ته الله، وبه وايي جنتيان (د دوزخيانو په ځواب کې): چې بېشکه الله حرام کړي دي دا دواړه (اکل او شرب) پر کافرانو.

هغه کافران چې نيولی دی دوی دين خپل تماشا او لوبې، او غولولي وو دوی ژوندانه لږ خسيس، نو نن ورځ به هېروو (پرېږدو) مونږ دوی؛ لکه چې هېر کړی وو دوی ملاقات د ورځې خپلې چې دغه ده، او (لکه چې) وو دوی چې په آيتونو ځمونږ به يې انکار کاوه (چې الله نه دي رالېږلي).

وَلَقَدۡ جِئۡنَٰهُم بِكِتَٰبٖ فَصَّلۡنَٰهُ عَلَىٰ عِلۡمٍ هُدٗى وَرَحۡمَةٗ لِّقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ ﴿٥٢﴾

او خامخا په تحقيق راوړی دی مونږ دغو (کفارو) ته کتاب چې واضح بيان کړي دي مونږ (معاني د) ده، حال دا چې عالمان وو مونږ (په معاني د ده) حال دا چې دغه کتاب هدايت او رحمت دی لپاره د (هغه) قوم چې ايمان (پرې) لري.

تفسير: ځينې مفسرين د دې آيت ترجمه داسې کوي: «او هرومرو (خامخا) په تحقيق راوړی دی مونږ کفارو ته يو کتاب يعنې قرآن، چې په تفصيل په کې بيان کړي دي مونږ عقائد او ديني أحکام او مواعظ او قصص په علم کامل خپل سره په وجوه دتفصيل ، په دې حال کې چې رهنما او مهرباني ده لپاره د هغه قوم چې ايمان پرې راوړي».

هَلۡ يَنظُرُونَ إِلَّا تَأۡوِيلَهُۥۚ يَوۡمَ يَأۡتِي تَأۡوِيلُهُۥ يَقُولُ ٱلَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبۡلُ قَدۡ جَآءَتۡ رُسُلُ رَبِّنَا بِٱلۡحَقِّ فَهَل لَّنَا مِن شُفَعَآءَ فَيَشۡفَعُواْ لَنَآ أَوۡ نُرَدُّ فَنَعۡمَلَ غَيۡرَ ٱلَّذِي كُنَّا نَعۡمَلُۚ قَدۡ خَسِرُوٓاْ أَنفُسَهُمۡ وَضَلَّ عَنۡهُم مَّا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ ﴿٥٣﴾

آيا انتظار کوي دوی (بلکه نه کوي) مګر عاقبت د هغه (شي ته چې په دغه کتاب) کې دي (له ثواب او عذابه چې ورښکاره شي)، په هغې ورځې کې چې راشي عاقبت د ده (په قيامت کې) وايي به هغه کسان چې هېر کړی وو دوی دغه کتاب پخوا له دې نه (په دنيا کې): په تحقيق راغلي وو رسولان د رب ځمونږ په حقه سره (خو ومو نه منل او بد مو وکړل)، نو آيا شته مونږ لره (اوس) له شفاعت کوونکو څخه يو څوک چې شفاعت وکړي دوی لپاره ځمونږ، يا بېرته بوتلل شو (دنيا ته)؛ نو (ښه) عمل به وکړو غير له هغه (بد) عمل چې وو مونږه چې کاوه به مو (په دنيا کې)، (وبه فرمايي الله): په تحقيق زيان رسولی دی دوی ځانونو خپلو ته په کفر، او ورک (او بې فائده) شو له دوی نه هغه چې وو دوی چې دروغ به يې ويلې (د شرک).

إِنَّ رَبَّكُمُ ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٖ ثُمَّ ٱسۡتَوَىٰ عَلَى ٱلۡعَرۡشِۖ يُغۡشِي ٱلَّيۡلَ ٱلنَّهَارَ يَطۡلُبُهُۥ حَثِيثٗا وَٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَ وَٱلنُّجُومَ مُسَخَّرَٰتِۢ بِأَمۡرِهِۦٓۗ أَلَا لَهُ ٱلۡخَلۡقُ وَٱلۡأَمۡرُۗ تَبَارَكَ ٱللَّهُ رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿٥٤﴾

بېشکه چې رب ستاسې الله دی هغه (الله) چې پيدا کړي يې دي آسمانونه او ځمکه (او هغه شيان چې د دوی په منځ کې دي) په (موده) شپږو ورځو کې، بيا اوچت شو الله پر عرش، پټوي (تياره د) شپې په (رڼا د) ورځې؛ چې طلب کوي هره يوه بل لره په تلوار سره، (او پيدا کړي يې دي) لمر او سپوږمۍ او ستوري حال دا چې مسخر (منقاد) کړی شوي دي امر (حکم) د الله ته، خبردار شئ چې (خاص) الله لره دي پيدا کول او امر (حکم فرمايل)، لوی برکت والا دی الله چې رب (پالونکی) دګردو (ټولو) عالميانو (د جهان دی).

تفسیر: ﴿ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾ «بیا اوچت شو الله پر عرش» د الله تعالی د صفاتو او افعالو په نسبت دغه خبره ښایي تل په یاد وساتل شي، چې د قرآن او حدیث په نصوصو کې کوم الفاظ چې د الله تعالی د صفاتو د بیانولو لپاره اختیاراوه شي، په هغو کې علی الأکثر همغه شیان دي، چې د مخلوقاتو په صفاتو کې استعمالیږي، مثلا الله تعالی ته حي، سمیع، او بصیر ویلی شوی دی، چې پر انسانانو هم د دغو صفاتو اطلاق کاوه شي، مګر په دغو دواړو مواقعو کې د استعمال حیثیت بیخي بېل او جدا (جلا) دی، نو پرته له دې خبرې څخه چې د هغه صفات د مخلوقاتو په شان نه دي؛ نور څه ویلی نه شو: ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ نه یواځې «سمع» او «بصر» بلکه د ده ګرد صفات ښایي همداسې وګڼلی شي، چې صفت د خپل أصل المبدأ (وضاحت د معنی) او غایت په اعتبار ثابت دی، مګر د هغه هیڅ یو کیفیت نشي بیان کېدی، او د سماوي شرائعو له خوا داسې څه حکم صادر شوی نه دی، چې انسان په داسې ما وراء العقولو حقائقو کې هم غور او خوض وکړي، او ځان په ربړونو (تکلیفو) کې اخته کړي، د دې خبرې څه خلاصه مو په (۶) جزء د المائده سورت په (۶۴) آیت (۹) رکوع کې د ﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ يَدُ اللَّهِ مَغْلُولَةٌ﴾ لاندې بیان کړې ده، په ﴿اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ﴾ هم له دې سره سم وپوهېږئ، د عرش معنی تخت او د «استواء» ترجمه اکثرو محققانو په استقرار سره هم کړې ده، لکه چې حافظ ابن القیم رحمه الله فرمائي:

ولهم عبارات علیها أربع *** قد حصلت للفارس الطعان

وهي(استقر) وقد (علا) وكذلك (ارتفع) الذي ما فيه من نكران

وكذاك قد (صعد) الذي هو رابعٌ *** وأبو عبيدة صاحب الشيباني

يختار هذا القول في تفسيره *** أدرى من الجهمي بالقرآن

﴿يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ﴾: «پټوي تیاره د شپې په رڼا د ورځې چې طلب کوي هره یوه بلې لره په تلوار سره، یا لټوي هره یوه له دوی بله په تلوار بلا فاصل یعنې متصل ورپسې راځي لکه طالب، او پیدا کړي دي مونږ لمر او سپوږمۍ او ستوري»، یعنې د شپې تیاره د ورځې په رڼا سره یا د ورځې رڼا د شپې په تیارې سره پټوي، او همداسې پرله پسې یو د بل تعاقب کوي، او په تلوار سره اوړي را اوړي، همدا چې شپه پای (آخر) ته ورسیږي، ورپسې جوخته ورځ راځي، یا چې ورځ ختمه شي، ورپسې سمه شپه رسیږي، د دې دواړو په منځ کې د یوې شېبې فرق او وقفه نه راځي، ښايي په دې سره یې داسې تنبیه فرمایلې وي: همداسې کله چې د کفر او ضلالت او د ظلم او عدوان توره تیاره شپه پر عالم محیطه شي، نو هغه وخت الله تعالی د ایمان او عرفان په لمر سره هرې خوا ته رڼا خوروي.

﴿مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ﴾ «چې مسخر، منقاد او قایل وي حکم د الله ته» یعنې هیڅ یو ستوري بې د الله تعالی له حکمه نشي خوځېدلی، او ټول د اله العالمین په حکم او فرمان پخپلو وظائفو کې مشغول دي.

﴿أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ﴾: «واورئ ! خبردار شئ ! چې خاص الله لره دي پیدا کول او امر (حکم) کول)، لوی برکت والا دی الله چې رب پالونکی د ګرد جهان دی»، پیدا کول «خلق» دی، او د پیدا کولو څخه وروسته تشریعي یا تکویني احکام ورکول «امر» دی، او دغه دواړه د الله تعالی په قبضه او اختیار کې دي، نو په دې شان د ګردو محاسنو او برکاتو منبع شو، بېشکه چې الله تعالی ډېر لوی ذات دی، په وحدانیت او الوهیت او ربوبیت او نورو جلالي او جمالي صفاتو خپلو کې، جل جلاله، عمّ نواله، وأعظم برهانه.

ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً

وبولئ تاسې رب خپل (هر وخت) په زارۍ عذر او په پټه سره (ځکه چې په پټه بلل د اخلاص دلیل دی).

تفسیر: کله چې د «عالم الخلق» او «عالم الأمر» مالك او د ګردو برکاتو منبع هم دغه پاك ذات دی، نو پخپلو دنیوي او اخروي حوائجو کې ښايي چې په الحاح، اخلاص، خشوع او خضوع سره بې له ځان ښوولو او ريا څخه ورو ورو وباله شي !.

له دې نه معلومیږي چې په دعاء کې اصل اخفاء ده، او هم دغه په اسلافو کې معموله وه، په ځينو مواضعو کې جهر او اعلان به د کوم عارض له مخې وي، چې د هغه تفصيل په «روح المعاني» او نورو کې شته.

إِنَّهُۥ لَا يُحِبُّ ٱلْمُعْتَدِينَ ﴿٥٥﴾

بېشکه چې الله نه خوښوي تيريکوونکي (له شرعي حدودو په دعاء بلکه په هر څه کې).

تفسير: يعنې په دعاء کې دې د ادب له حدودو تېرى ونه کړى شي، مثلا هغه شيان چې عادتاً يا شرعاً محال وي؛ هغه وغواړي، يا د معاصيو او لغو شيانو طلب وکړي، يا داسې کوم سوال وکړي چې د ده له شان او حيثيته سره څه مناسبت نه لري، (يا به مراد ترې پورته کول د غږ وي، يا به ډېر اوږدول د دعا وي) دا ګرد (ټول) په «اعتداء في الدعاء» کې داخل دي.

وَلَا تُفْسِدُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَـٰحِهَا وَٱدْعُوهُ خَوْفًا وَطَمَعًا ۚ إِنَّ رَحْمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾

او مه کوئ فساد (اى انسانانو !) په ځمکه کې وروسته له اصلاح د دې (د انبياوو په بعثت سره)، او وبولئ تاسې الله (عبادت يې کوئ) په خوف (وېرې) سره (له عذابه د الله)، او په طمع (اميد د رحمت د الله)، بېشکه چې رحمت (مهرباني) د الله ډېره نژدې ده محسنانو (نيکي کوونکو) ته.

تفسير: يعنې کله چې په دنيا کې د معاملاتو سطحه اصلاح، برابره او درسته شي؛ نو بيا تاسې په هغې کې اختلال او اشکال مه آچوئ !، او سره له خوف او رجاء د پاك الله په عبادت کې لګيا او مشغول اوسئ ! مه د الله تعالى له رحمته مأيوس او نا اميده شئ، او مه د الله تعالى له عذابه مأمون او بې فکره وګرځئ، او مه ککړوئ خپل ځانونه په ګناهونو او مه پرې جرأت کوئ !، راجح همدا ده چې دلته په «وادعوه» کې له «دعاء» څخه عبادت مراد شي، لکه چې د «صلاة التهجد» په باره کې يې فرمايلي دي: ﴿تَتَجَافَىٰ جُنُوبُهُمْ عَنِ ٱلْمَضَاجِعِ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَطَمَعًا﴾.

وَهُوَ ٱلَّذِى يُرْسِلُ ٱلرِّيَـٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَىْ رَحْمَتِهِۦ ۖ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَقَلَّتْ سَحَابًا ثِقَالًا سُقْنَـٰهُ لِبَلَدٍ
مَّيِّتٍ فَأَنزَلْنَا بِهِ ٱلْمَآءَ فَأَخْرَجْنَا بِهِۦ مِن كُلِّ ٱلثَّمَرَٰتِ ۚ كَذَٰلِكَ نُخْرِجُ ٱلْمَوْتَىٰ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٥٧﴾
وَٱلْبَلَدُ ٱلطَّيِّبُ يَخْرُجُ نَبَاتُهُۥ بِإِذْنِ رَبِّهِۦ ۖ وَٱلَّذِى خَبُثَ لَا يَخْرُجُ إِلَّا نَكِدًا ۚ كَذَٰلِكَ نُصَرِّفُ ٱلْـَٔايَـٰتِ
لِقَوْمٍ يَشْكُرُونَ ﴿٥٨﴾

او همدغه (الله) هغه ذات دی چې راليږي بادونه زېرى کوونکي په مخ کې د رحمت د ده (چې باران دى)، تر هغه پورې چې راواخلي (دغه بادونه) وريځې درنې (په اوبو سره) چې روانوو مونږ دغه (وريځې زرغونولو د) هغه ځمکې ته چې مړه (وچه بې ګياه) وي، پس نازلوو مونږ له دې وريځو څخه اوبه؛ نو راباسو مونږ په هغو اوبو له هر قسم مېوو څخه، همداسې (چې دغه مړه وچه ځمکه ژوندى کوو) راباسو مونږ مړي (له ځمکې) لپاره د دې چې پند واخلئ (او لازم دي چې غور په کې وکړئ). او ځمکه پاکه (خوړه صالح الزراعته) راوځي زرغونه د دې (ښه کامله) په اذن (حکم) د رب د ده، او هغه ځمکه چې خرابه ښوره ناکه وي؛ نه راوځي (زرغونه يې) مګر لږ ناقصه، په شان د دې (پاس مثالونو) بيا، بيا، بيانوو آيتونه لپاره د قوم (مؤمنانو) چې شکر باسي.

تفسير: او س د «سفليّاتو» او د «كائنات الجو» په متعلق د خپلو ځينو تصرفاتو ذكر فرمايي، تر څو خلق پرې ښه وپوهيږي، چې د ګردو (ټولو) علويّاتو او سفليّاتو او جويّاتو اسمان، ځمكه، او د دوی دواړو په منځ او شاوو خوا كې د ګردو (ټولو) موجوداتو عمومي حكومت د پاك الله رب العالمين په قبضه كې دی، د بادونو چلېدل، د بارانونو، واورې، ږلۍ ورول، د راز راز (قسم قسم) ګلانو، شنيليو، او نباتاتو پيدا كول د هرې ځمكې له استعداده سره سم په كې كښتونه (فصلونه) د څړ ځايونه، باغونه، رياحين، أشجار، أثمار او نور شيان پيدا كول؛ دا ګرد (ټول) د الله تعالی د كامله قدرت او بالغه حكمت علامې او نښې دي.

كله چې الله تعالی په خپل رحمت او شفقت سره توره تياره شپه په ستورو، سپوږمۍ او لمر سره رڼا كوي، او له وچې ځمكې څخه شنيلي او نباتات زرغونوي، او له هغو څخه د انسانانو او حيواناتو د ژوندون سامان تياروي، او د ګردو (ټولو) سفلياتو د حيات او نشاط د مهيا كولو لپاره له آسمانه وريا (باران) رانازلوي؛ نو څرنګه كېدای شي چې داسې مهربان الله د خپل مخلوق بني آدمانو لپاره داسې كوم ستوری، سپوږمۍ او لمر به يې نه وي پيدا كړی، چې دوی د جهل او ظلم له تيارو څخه هم وباسي، او د روحاني غذاء د تيارولو د معنوي كښتونو (فصلونو) د سېرابولو (اوبولو او لويولو) لپاره به يې د رحمت باران نه وي نازل كړی؟.

او لكه چې د باران او د ځمكې په مثال كې اشاره كړې شوې ده، چې مختلفې ځمكې د خپلو استعدادونو سره سم د باران اثر قبلوي، همداسې وپوهېږئ چې انبياء عليهم السلام د هغه خير او بركت لپاره چې لېږلي شوي وو، له دوی څخې منتفع كېدل هم په ښو استعدادونو پورې موقوف دي، هغه خلق چې ترې انتفاع نه اخلي، يا پوره نه منتفع كيږي، دوی ته ښايي پر خپلو دغو بدو استعدادونو وژاړي.

لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِۦ فَقَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿٥٩﴾ قَالَ ٱلْمَلَأُ مِن قَوْمِهِۦٓ إِنَّا لَنَرَىٰكَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٦٠﴾

قسم دی په تحقيق لېږلي وو مونږ نوح قوم خپل ته نو وويل (نوح): ای قومه ځما ! عبادت وكړئ تاسې د الله، نشته تاسې ته هيڅ معبود برحق بې له دغه (الله)، بېشكه زه ويرېږم په تاسې باندې له عذاب د ورځې لويې (طوفان يا د قيامت). نو وويل مشرانو له قومه د نوح: بېشكه مونږ وينو (يا ګڼو) تا په ګمراهۍ څرګنده كې (چې پلرنی دين دې پرېښی او ډېر معبودان نه منې).

تفسير: د آدم عليه السلام قصه د دې سورت په ابتداء كې تېره شوه، وروسته له آدم عليه السلام لومړنی اولوا العزم او مشهور رسول نوح عليه السلام وو، چې د أهل الأرض د مشركانو د اصلاح او هدايت لپاره ولېږل شو، اګر كه د نوح عليه السلام د خاص شريعت په اعتبار د ده بعثت خاص د ده د قوم په لوري وو، خو بيا هم د هغو اساساتو او اصولو په اعتبار چې د ګردو (ټولو) انبياوو عليهم السلام په اصولو كې سره ګډ او مشترك دي؛ د هغه مخاطبان ګرد انسانان دي.

وايي چې د آدم عليه السلام څخه لس قرنه وروسته د هغه ګرد اولاد د توحيد پر كلمه ټينګ ولاړ وو، د بت پرستۍ ابتداء د ابن عبّاس رضي الله تعالی عنه له قول سره موافق داسې شروع شوه، چې د ځينو صالحانو د وفات څخه وروسته چې د دوی نومونه (ود، سواع، يغوث، يعوق، او نسر) وو، او د نوح په سورت كې مذكور دي، خلقو د هغو څېرې جوړې كړې، تر څو د دوی د احوالو، عباداتو اونورو خصوصياتو يادونه پرې وشي، لږ څه وروسته د هغو تصاويرو په شان څو مجسمې تيارې شوې، او متدرجا خلق د دغو مجسمو په عبادت كې لګيا شول، چې د همغو مشرانو په نامه موسومې شوې وې.

کله چې د بت پرستۍ وبا خوره او منتشره شوه، نو الله تعالی نوح علیه السلام ولېږه، نوح علیه السلام پخوا له طوفانه خپل قوم ته تر نهه نیم سوه کاله پورې د توحید او د تقوی په لوري دعوت ورکړ، او د دنیا او آخرت له عذابونو څخه یې دوی وویرول، مګر خلقو د ده دعوت او بلنه ونه منله، او د نوح علیه السلام په تضلیل او تجهیل یې لاس پورې کړ، تر څو د طوفان لوی عذاب دوی ګرد سره ونیول، او همغسې چې د نوح علیه السلام دعا وه: ﴿رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا﴾ د ځمکې د مخې هیڅ یو کافر له الهي عذابه خلاص نشو.

قَالَ يَٰقَوْمِ لَيْسَ بِي ضَلَٰلَةٌ وَلَٰكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿٦١﴾ أُبَلِّغُكُمْ رِسَٰلَٰتِ رَبِّي وَأَنصَحُ لَكُمْ وَأَعْلَمُ مِنَ اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦٢﴾ أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَآءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ وَلِتَتَّقُوا۟ وَلَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٦٣﴾

وویل (نوح): ای قومه څما ! نشته په ما کې (له سره) هیڅ ګمراهي، ولیکن زه یم رسول (استازی) له جانبه د رب (پالونکی) د ګردو (ټولو) عالمیانو. رسوم تاسې ته پیغامونه د رب خپل او پند درکوم تاسې ته (محض لپاره د نفع ستاسې) اوپوهېږم له (جانبه د) الله (په وحیې سره) په هغه څه چې پرې نه پوهېږئ تاسې. آیا تعجب کوئ تاسې له دې چې راغلی دی تاسې ته ذکر (پند د وحیې) له لوري د رب ستاسې پر (ژبې د) یو سړي له (جنسه د) ستاسې لپاره د دې چې وویروي دی تاسې، او لپاره د دې چې پرهېزګاران شئ تاسې، او لپاره د دې چې پر تاسې باندې رحم وکړی شي.

فَكَذَّبُوهُ فَأَنجَيْنَٰهُ وَالَّذِينَ مَعَهُۥ فِي الْفُلْكِ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمًا عَمِينَ ﴿٦٤﴾

پس نسبت د دروغو وکړ (کفارو دغه نوح) ته، نو نجات مو ورکړ دغه (نوح) او هغو کسانو ته چې له ده سره (ملګري) وو په بېړۍ کې، اوغرق مو کړل هغه کسان چې نسبت د دروغو یې کړی وو آیتونو ځمونږ ته، بېشکه دوی وو یو قوم ړانده (له حقه).

**تفسیر:** یعني له هغو سره د نفعې او نقصان، او د حق او باطل هیڅ فکر او اندېښنه نه وه، ګردو (ټولو) ځانونه ړانده کړي وو، او پرله پسې په سرکښۍ، تکذیب او بغاوت کې یې ټینګار (همېشه والی) کاوه، او له بت پرستۍ او نورو متمردانه حرکاتو څخه یې لاس نه آخیستل، نو په شمار څو مؤمنان د دوی له منځه وژغورل (وساتل) شول، چې له نوح علیه السلام سره په بېړۍ کې سواره شوي وو، نور ګرد (ټول) مکذبین سره ډوب شول.

اوس هومره انسانان چې په دې دنیا شته، دوی د همدې أهل السفینة بلکه د نوح علیه السلام له ذریاتو څخه دي، (أهل السفینة (۸۰) مؤمنـان وو، (۴۰) تنه نارینه، (۴۰) تنه ښځې، ځینې وایي چې (۹) تنه وو، درې ځامن د نوح علیه السلام سام، حام، یافث، او شپږ تنه نور، او ټول راکبین (۱۶۰) ذوي الأرواح وو).

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۗ قَالَ يَٰقَوْمِ اعْبُدُوا۟ اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥٓ ۚ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٦٥﴾

او (لېږلی وو مونږ قوم د) عاد ته (قومي) ورور د دوی «هود»، وویل (هود): ای قومه څما ! عبادت کوئ تاسې د الله، نشته تاسې ته هیڅ (حق) معبود بې له الله، نو آیا تاسې نه ویرېږئ؟ (له عذابه د الله او پرهېز نه کوئ له شرکه؟).

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿٦٦﴾

نو وویل مشرانو هغو چې کافران شوي وو له قومه د دغه (هود): بېشکه مونږ خامخا وینو تا (خبښ) په بې عقلۍ کې، او بېشکه مونږ خامخا ګمان کوو په تا له دروغجنانو.

**تفسیر:** یعني (معاذ الله) ته پخپله بې عقل یې، چې د خپلو پلرونو او نیکونو دود او دستور دې پرینبی دی، او د ګردو له اخوت او ورور ګلوۍ څخه بېل شوی یې، او دروغجن هم یې چې د خپلو اقوالو نسبت الله تعالی ته کوې، او مونږ له لوی عذاب څخه هم وېروې.

قَالَ يَا قَوْمِ لَيْسَ بِي سَفَاهَةٌ وَلَكِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٦٧﴾ أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنَا لَكُمْ نَاصِحٌ أَمِينٌ ﴿٦٨﴾ أَوَعَجِبْتُمْ أَن جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِّن رَّبِّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ مِّنكُمْ لِيُنذِرَكُمْ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٦٩﴾

وویل (هود): ای قومه څما ! نشته په ما کې (له سره) هیڅ بې عقلي، ولیکن زه یم رسول (استازی) له جانبه د رب پالونکي (د ګردو عالمیانو). در رسوم تاسې ته پیغامونه د رب خپل او زه تاسې ته نصیحت کوونکی ښه امانت ګر یم. آیا تعجب کوئ تاسې له دې چې راغلی دی تاسې ته ذکر (پند) له (لوري د) رب ستاسې پر (ژبه) د یوه سړي له تاسې لپاره د دې چې وویروي دی تاسې، او یاد کړئ تاسې هغه وخت چې ګرځولي وئ (الله) تاسې خلیفګان (په ځمکه کې) وروسته له (غرقېدلو د) قوم د نوح، او زیات کړی یې دی تاسې ته په پیدایښت کې قوت، قامت، اوږدوالی، نو یادوئ تاسې نعمتونه (احسانونه) د الله، ښایي چې تاسې خلاصی وموموئ ! (له عذابه د الله).

**تفسیر:** یعني الله تعالی پس له نوح علیه السلام په دنیا کې ستاسې حکومتونه قائم کړل، او د ده په ځای یې تاسې ودرولئ، او هلته مو وداني وکړه، ښایي چې هود علیه السلام دغه احسان دوی ته ور په یاد کړی وي، او د دغې خبرې تنبیه یې ورته ورکړي وي، چې د بت پرستۍ او تکذیب الرسول له امله هغه پېښې چې هغوی ته ورپېښې شوې وې؛ نه ښایي چې تاسې ته هم درپېښې شي.

او زیات کړی دی الله تاسې ته په پیدایښت کې قوت او قامت او اوږدوالی، چې د جسماني قوت، طول، عرض، شجاعت او حماست په اعتبار تاسې ډېر یو نومیالی او مشهور قوم یئ؛ نو یاد کړئ تاسې نعمتونه د الله، ښایي خلاصی وموموئ له عذابه د الله، دغه احسانات چې مذکور شول، او برسېره پر هغو نور بې شماره احسانات یې ور په یاد کړل، او ور په زړه یې کړل، چې ښایي د هغه پاک الله شکر ګذاري وکړئ ! او ګرد (ټول) احکام یې ومنئ ! او له سره تاسې ته نه ښایي چې د هغه حقیقي منعِم په مقابل کې بغاوت وکړئ، او غاړه ترې وغړوئ !.

قَالُوا أَجِئْتَنَا لِنَعْبُدَ اللَّهَ وَحْدَهُ وَنَذَرَ مَا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿٧٠﴾

وویل عادیانو (هود ته): آیا راغلی یې ته مونږ ته د دې لپاره چې عبادت وکړو مونږ د الله یواځې او پرېږدو هغه (بتان) چې وو چې عبادت به کولو (د هغو) پلرونو څمونږ، نو راوړه مونږ ته هغه عذاب چې ته (پرې) وېروې مونږ که یې ته له صادقانو (رښتیا ویونکو په خبرو خپلو کې).

تفسير: يعني له هغه عذابه چې مونږ وېروې، كه ته رښتين يې؛ نو يې ژر راوړه، مونږ خو د بتانو عبادت نه پرېږدو، او د خپلو پلرونو له دستوره لاس نه اخلو.

قَالَ قَدْ وَقَعَ عَلَيْكُم مِّن رَّبِّكُمْ رِجْسٌ وَغَضَبٌ ۖ أَتُجَادِلُونَنِي فِي أَسْمَاءٍ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا نَزَّلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ ۚ فَانتَظِرُوا إِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ﴿٧١﴾

وويل (هود) په تحقيق واقع (واجب) شو پر تاسې له (لوري) د رب ستاسې عذاب او قهر، آيا جګړه کوئ تاسې له ما سره په هغو (تشو) نومونو کې چې اېښي دي هغه (نومونه) تاسې او پلرونو ستاسې، حال دا چې نه دی رالېږلی الله په عبادت کولو د دوی هيڅ برهان علمي سند؟ ! نو انتظار کوئ تاسې (د عذاب) بېشکه زه چې يم له تاسې سره له منتظرانو څخه يم.

تفسير: يعني کله چې ستاسې سپين سترګي، سرکشي، ګستاخي او بې حيايي تر دې حده پورې رسېدلې ده؛ نو وپوهېږئ چې د الله تعالى قهر او غضب پر تاسې نازل شوی دی، او اوس د هغه په راتلو کې هيڅ ځنډ (تأخير) او ډيل کېدونکی نه دی.

تاسې چې بتانو ته داسې وايئ: «هغه روزي ورکوي، او دغه باران اوروي، او دا اولاد ورکوي، وقس على هذا»؛ دغه تش يو نوم او يواځې بې حقيقته يو مفهوم دی، او بيخي واقعيت اوحقيقت نه لري، د الوهيت صفات په تيږې (ګټې) او نورو مخلوقاتو کې له کومه راغلل؟ ! بيا نو د داسې معبودانو په نسبت چې په هغوی کې د معبوديت هيڅ يو عقلي او نقلي سند نشته، بلکه په ټولو عقلي او نقلي اسنادو سره يې ترديد کيږي، له ما سره د توحيد په مسئله کې ولې جګړې او بحثونه کوئ؟ کله چې ستاسې د جهل او شقاوت او عناد جام دومره ډک شوی وي؛ نو انتظار وکړئ چې الله تعالى د دغو ګردو (ټولو) جګړو فيصله (پرېکړه) وکړي، زه هم د همغه فيصلې ته منتظر يم.

فَأَنجَيْنَاهُ وَالَّذِينَ مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَقَطَعْنَا دَابِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۖ وَمَا كَانُوا مُؤْمِنِينَ ﴿٧٢﴾

نو خلاصی ورکړ مونږ دغه هود ته او هغو کسانو ته چې له ده سره وو په رحمت سره له (جانبه) ځمونږ، او پرې کړ مونږ بيخ د هغو کسانو چې نسبت د دروغو يې کړی وو په آيتونو ځمونږ او نه وو دوی مؤمنان (يقين کوونکي په وحدت او نبوّت).

تفسير: يعني پر دوی اووه شپې او اته ورځې مسلسل د سخت باد سيلۍ (طوفان) راغله، چې د هغې په اثر ګرد (ټول) کفار ټوټې ټوټې او هلاک او پوپناه شول.

وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۗ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ ۖ هَٰذِهِ نَاقَةُ اللَّهِ لَكُمْ آيَةً ۖ فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ ۖ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِن بَعْدِ عَادٍ وَبَوَّأَكُمْ فِي الْأَرْضِ تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُورًا وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتًا ۖ فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللَّهِ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿٧٤﴾

او (لېږلی وو مونږ) ثموديانو ته (قومي) ورور د دوی صالح، وويل (صالح) ای قومه ځما ! عبادت کوئ تاسې د الله، نشته تاسې ته هيڅ (حق) معبود بې له دغه (الله)، په تحقيق راغلې ده تاسې ښکاره معجزه له (لوري د) رب ستاسې، دا اوښه د الله ده تاسې ته نښه، نو پرېږدئ تاسې دغه

(اوښه) چې خوري (واښه) په ځمکه د الله کې، اومه ورورېږئ تاسي لاسونه دې ته په (نيت) د بدی (يعني ضرر مه وررسوئ)؛ نو وبه نيسي تاسي عذاب دردناک. (وويل صالح): او ياد کړئ تاسي هغه وخت چې وګرځولی (الله) تاسي خليفګان وروسته له عاديانو او ځاي يې درکړو تاسي ته په ځمکه کې، چې نيسئ (جوړوئ) تاسي له هوارو نرمو ځايونو د دې ځمکې هسکې (اوچتې) ماڼۍ، او کنئ تاسي غرونه لپاره د کورونو، نو ياد کړئ تاسي نعمتونه د الله، او مه ګرځئ (کوښښ مه کوئ) تاسي په ځمکه کې حال دا چې قصد کوونکي د فساد يئ.

تفسير: يعني هغه دليل چې تاسي غوښت؛ درورسېد، د صالح عليه السلام قوم له ده سره تعهد او اقرار کړی وو، چې که ته د يوې غټې لويې تيږې (ګټې) څخه يوه بلاربه اوښه راوباسې، نوموږ به پر تاسي ايمان راوړو، الله تعالی د صالح عليه السلام په دعاء همداسې وکړه، نو صالح عليه السلام دوی ته وويل چې: ځئ! او س خو پاک الله ستاسې له غوښتنې سره سم هغه اوښه له دغې کلکې لويې تيږې څخه راوويسته، نو اوس په ايمان راوړلو کې ولې ډيل او تأمل کوئ؟ دغه اوښه د الله تعالی د قدرت او ځما د صداقت نښه ده، چې ځما په دعاء په غير معتاده طريقه سره الله تعالی پيدا کړه، نو د دې د حقوقو رعايت وکړئ! مثلا د الله تعالی په ځمکه کې د مباحو وښو له خوراکه او د وار د اوبو د چينلو څخه يې مه منع کوئ! الغرض د الله تعالی دې نښې ته چې ستاسې په غوښتنې سره په وجود راغلی ده؛ په بده وضع سره مه وراندې کېږئ! که نه تاسې ته به هم خير نه درپېښيږي.

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ مِنْهُمْ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ صَالِحًا مُرْسَلٌ مِنْ رَبِّهِ قَالُوا إِنَّا بِمَا أُرْسِلَ بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿٧٥﴾ قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا بِالَّذِي آمَنْتُمْ بِهِ كَافِرُونَ ﴿٧٦﴾

وويل مشرانو هغو چې کبر (او سرکشي) يې کړې وه (له ايمانه) له قومه د دغه (صالح) څخه هغو کسانو ته چې ضعيف (او کمزوري) ګڼلې شوي وو؛ هغه چاته چې ايمان يې راوړی وو له دوی څخه: آيا يقين لرئ تاسي په دې چې بېشکه صالح مرسل (رالېږلی شوی دی تاسې ته) له (لوري د) رب د ده؟ وويل دغو (ضعفاوو چې هو!) بېشکه موږ په هغه (توحيد او عبادت) چې رالېږلی شوی دی (صالح) په هغه مؤمنان (يقين لرونکي) يو، وويل هغو کسانو چې لويې تکبر يې کړی وو: بېشکه موږ په هغه شي چې ايمان راوړی دی تاسې په هغه باندې کافران (منکران) يو.

تفسير: يعني په قوم کې هغه چې لويان، اومشران معاندان وو؛ دغو غټانو په غريبو او کمزورو مسلمانانو ته د استهزاء په ډول ويل چې: آيا دغه يواځې تاسې ته معلومه شوې وه، چې صالح د الله تعالی رسول دی؟ مسلمانانو به په ځواب کې دوی ته ويل: چې معلومېدل څخه معنی لري، دغه خو تاسې ته هم معلومه ده، هو! موږ خو صالح عليه السلام د زړه له کومې او اخلاصه قبول کړی دی، او ايمان مو پرې راوړی دی، متکبران به د داسې حکيمانه ځوابونو له آورېدلو څخه شرمېدل، او ويل به يې: هغه شی چې تاسې قبول کړی دی؛ موږ يې نه قبلوو.

فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا يَا صَالِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٧٧﴾

نو زخمي او مړه کړه دوی اوښه، او سرکشي وکړه دوی له امره (حکمه) د رب خپل، او وويل دغو (کفارو چې) ای صالحه! راوړه موږ ته هغه عذاب چې ته ويروې موږ ترې که يې ته له مرسلانو (په حقه سره).

تفسیر: وايي دغه اوښه دومره عظيم الجثه لويه او ببره وه، چې په هر ځنګله کې به څر ته ورتله؛ نو نور مواشي به له دې ځنې ويرېدل، او لرې به ترې تښتېدل، او په خپل وار به په هر يوه کوهي باندې چې درېدله؛ د هغه کوهي ټولې اوبه به يې چښلې، او هغه به يې تش او خالي پرېښود.

ګواکې همغسې چې د دې پيدايښت فوق العاده وو، ګرد لوازم او د ژوندانه آثار يې فوق العاده وو، بالآخره کافران پرې په قهر او غصه شول، او د دې پر وژلو يې اتفاق او تړون وکړ، او بدبخت (قذار بن سالف) يې لومړني پړکي پرې کړل، او بيا يې ووژله، وروسته د صالح عليه السلام وژلو ته هم تيار شول، او په دې ډول د صالح عليه السلام او د «ناقة الله» په نسبت څه احکام چې صادر شوي وو، د هغو مخالفت يې وکړ، او دغو کفارو ويل چې: ای صالحه ! راوړه مونږ ته هغه عذاب چې ته ويروې مونږ ترې که ته يې له مرسلانو په حقه سره.

داسې کلمات د انسان له ژبې څخه په هغه وخت کې وځي چې د الله تعالی له قهر او غضبه بيخي بې خوفه او بې پروا شي، «عاد الأولی» په شان «ثمود» هم داسې يوې مرتبې ته ورسېدل، چې د الهي عذاب مورد وګرځېدل، چې د دې ذکر دا دی:

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴿٧٨﴾

پس ونيول دوی زلزلې (پس له اورېدلو د سختې چيغې) نو وګرځېدل دوی (ګهيځ، سهار) په کورونو خپلو کې مړه پړمخي پراته.

تفسير: په بل آيت کې يې د دوی هلاک په «صيحې» يعنې چغې سره بيان فرمايلی دی، ښايي چې له لاندې به زلزله او له پاسه به ډېره سخته وېروونکې چغه شوي وي.

فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَةَ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُحِبُّونَ النَّاصِحِينَ ﴿٧٩﴾

نو وګرځېده (صالح) له دوی (او لاړ ترې متأسفا) او وويل: ای قومه څما ! قسم دی خامخا په تحقيق سره ورساوه ما تاسې ته پيغام د رب خپل او پند مې درکړ تاسې ته، وليکن نه خوښوئ تاسې پند ورکوونکي.

تفسير: وايي چې صالح عليه السلام د خپل قوم د هلاکت څخه وروسته د مکې معظمې يا د شام په لوري لاړ، او د خپل تګ په وخت کې يې د دوی د مړو انبارونه وليدل، او داسې خطاب يې وکړ، لکه چې څمونږ رسول أکرم صلی الله عليه وسلم د بدر مقتولينو ته خطاب کړی وو.

يا يواځې د تحسّر او تأسّف په ډول به يې يو فرضي خطاب کړی وي، لکه چې أدباء، او شعراء خرابو اطلالو (کنډوالو) او نورو سره داسې خبرې اترې او مخاطبې کوي.

ځينې وايي چې: دغه خطاب پخوا له هلاکته وو، يعنې کله چې ثموديانو هغه اوښه حلاله کړه، او د عذاب الله ور يې پر خپلو ځانونو وپرانيست، نو په دې صورت به په کلام کې د واقعاتو د ترتيب مراعات نه وي شوی، په هر حال په دغه خطاب سره د نورو تنبيه او اورول مقصود وو، چې ښايي تاسې د خپلو معتبرو خير غوښتونکو خبرې قبولې کړئ، او هر څوک چې د خپل حقيقي خير غوښتونکي خبرو ته غوږ نه ږدي، او نه يې مني، او قدر يې نه کوي؛ نو همداسې له بدې نتيجې سره مخامخ کيږي.

وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ مَا سَبَقَكُم بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِّنَ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٨٠﴾

او (یاده کړه ای محمده ! دوی ته قصه د) لوط، کله چې یې وویل قوم خپل ته: آیا راتګ کوئ تاسې دې بد کار (لواطت) ته، چې نه دي رومبي شوي له تاسې څخه دې کار ته هیڅ یو له ټولو خلقو (نو تاسې یې هم مه کوئ !).

تفسیر: لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام وراره وو، چې له ده سره عراق څخه شام ته راغی، او د الله تعالی له خوا د سدوم او د هغه شاوخوا د کلیو په لوري مبعوث شوی وو، چې د هغو ځایونو د خلقو اصلاح وکړي، او دوی له هغه خراب ګنده خلاف الفطرت او د بې حیایی له کارونو څخه وژغوري (وساتي)؛ چې په هغو سره د هغو ځایونو خلق نه یوازې اخته او مبتلا وو، بلکه دوی د دغې بې حیایی مبتکران هم وو، او پخوا له دوی نه په دنیا کې په دغې اخلاقي ناروغی هیڅوك نه وو مبتلا او نه ترې خبر وو، اول شیطان دغه ملعون حرکت د «سدوم» اوسېدونکو ته وروښود، او بیا له هغه ځایه نورو ځایونو ته تیت (خور) او منتشر شو، لوط علیه السلام د دوی د دغه ملعون او شنیع حرکت له بدو عواقبو څخه دوی ته خبرداری او تنبیه ورکړ، او غوښتل یې چې دغه پلیتی او ګندګی له دنیا محوه او ورکې شي.

إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ ۚ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُونَ ﴿٨١﴾

بېشکه تاسې خامخا راځئ سړیو ته لپاره (د قضاء) د شهوت په دې حال کې چې تجاوز کوونکي یئ (له خپلو) ښځو (نو نه یئ په حقه لاره، دا لا څه) بلکه یئ تاسې یوم قوم اسراف کوونکی (له شرعي حده تېرېدونکی په هر شي کې).

تفسیر: یعنې یوازې همدا نه ده چې د همدې یوې ګناه مرتکب شوي یئ، بلکه د دې خلاف الفطرت فعل ارتکاب د دې خبرې دلیل دی؛ چې تاسې د انسانیت له حدوده هم وتلي یئ.

وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓا۟ أَخْرِجُوهُم مِّن قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٨٢﴾ فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ كَانَتْ مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴿٨٣﴾

او نه وو ځواب د قوم د دغه (لوط د نصحیت په مقابل کې) مګر خو داسې چې ویل قوم د لوط (په خپلو منځو کې) چې وباسئ (وشړئ) تاسې دغه (لوط او تابعان یې) له قریې ستاسې (سدوم) بېشکه دوی داسې خلق دي چې په تکلّف سره ځان پاکوي (ځمونږ له افعالو). نو نجات ورکړ مونږ دغه (لوط) ته او اهل (اتباعو) د ده ته مګر ښځه د ده؛ چې وه له پاتې کېدونکو (په عذاب کې).

تفسیر: یعنې دوی بالآخر داسې وویل: هر کله چې لوط علیه السلام مونږ ګرد پلیت او نجس ګڼي، او خپل ځان پاك بولي، او له مونږ څخه ډډه کوي، نو له بدانو سره د نېکانو څه غرض دی؟ نو څکه دوی ګرد سره په دې فکر کې ولوېدل چې لوط علیه السلام له خپله منځه وباسي، او خپل ځانونه له دغې ورځنۍ جګړې څخه بیخي وژغوري (وساتي).

وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٨٤﴾

او وورواوه مونږ په دوی باندې باران (د کاڼو هلاك مو کړل)، پس ګوره ته چې څرنګه شو عاقبت (بده خاتمه) د ګناهګارانو (چې هلاك شول په عذاب سره).

تفسیر: په بل ځای کې مذکور دي، چې ډېر کلي واړول شول، او د تیږو (ګټو) باران اورېده، د ځینو ائمه وو په نزد اوس هم ښايي چې لوطي ته همداسې سزا ورکړه شي، چې له کوم غره یا یوه لوړ ځای ښخه وغورځاوه شي، او له پاسه په کاڼو وویشتل شي، او یا په ډېر سخت بوی ناک او ګنده ځای کې بندي شي.

﴿فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُجْرِمِينَ﴾ «وګوره ته چې څرنګه شو عاقبت او بده خاتمه د ګنهګارانو کافرانو چې هلاک شول په عذاب سره».

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۗ

او (لېږلی مو وو) مدین ته (قومي) ورور د دوی شُعیب،

تفسیر: د قرآنکریم په بل ځای کې ذکر شوي، چې شعیب علیه السلام «أصحاب الأیکة» ته مبعوث شوی دی، که «أهل المدین» او «أصحاب الأیکة» دواړه سره هم دغه یو قوم وي؛ فبها ونعمت، او که سره دوه بېل بېل قومونه وي، نو دغو دواړو ته به مبعوث شوی وي، په دغو دواړو قومونو کې به په تول او پیمانه کې د کمولو مرض مشترک وي، په هر حال شعیب علیه السلام دتوحید او نور عمومي دعوت او بللو ښخه سربېره خلق یې د معاشرتي معاملاتو د خصوصي اصلاح او د حقوق العباد د حفاظت او ساتلو په نسبت هم په ډېر تأکید او فعالیت سره متوجه ګرځولي دي.

قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ قَدْ جَاءَتْكُم بَيِّنَةٌ مِّن رَّبِّكُمْ

وویل (شعیب چې) ای قومه څما ! عبادت وکړئ د الله، نشته تاسې ته هیڅ (حق) معبود بې له ده، په تحقیق راغلی دی تاسې ته دلیل ښکاره له (لوري د) رب ستاسې.

تفسیر: یعنې څما د صداقت دلیل ظاهر شوی دی، که زه د نصیحت خبره تاسې ته وکړم؛ هغه قبوله کړئ ! او په هغو خطرناکو عواقبو چې تاسې خبروم؛ له هغو ځنې ځان وژغورئ (وساتئ)، او د خپل خیر او شر په باره کې هوښیار اوسئ.

فَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ بَعْدَ إِصْلَاحِهَا ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٨٥﴾

نو پوره ورکوئ تاسې پیمانه (خلقو ته) او تله (تول هم) او کم مه ورکوئ تاسې خلقو ته شیونه (حقونه) د دوی، او فساد (خرابي) مه کوئ تاسې په ځمکه کې (په کفر او خیانت سره) پس له اصلاح د دې، دغه (اصلاح او امانتداري) خیر (ډېر بهتر) دی تاسې ته که یئ تاسې ایمان راوړونکي.

تفسیر: د بندګانو د حقونو رعایت او یو تر بله سره د معاملاتو د ساتنې مزیت چې نن څمونږ د زمانې پرهېزګاران هم چنداني توجه ورته نه لري؛ د الله تعالی په نزد دومره اهم شی دی، چې هغه یې د یوه جلیل القدر رسول مخصوصه وظیفه مقرره کړه، او د هغه د مخالفت له سببه یو قوم پوپناه شو.

په دغو آیتونو کې د شعیب علیه السلام په ژبه خبر راکړی شوی دی، چې خلقو ته د ډېر لږ مالي ضرر، تاوان رسونه او په وطن کې وروسته د اصلاحي حالت له قیامه خرابي، فتنه او فساد آچول که د شرک او کفر په صورت کې وي، یا د ناحقه وژلو، لوټ کولو، او نورو مناهیو په شکل کې وي؛ دا ګرد (ټول) ممنوع دي، او د هیڅ یو ایماندار انسان له اعمالو ښخه دا نشي کېدی، چې خلقو ته د دوی حقوق ورکړي، او په امانت کې خیانت وکړي، یا په وطن کې اله ګوله او شور ماشور جوړ کړي.

وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِهِ وَتَبْغُونَهَا عِوَجًا ۚ

او مه کښېنئ تاسې پر هره لاره (لپاره د شوکولو) حال دا چې ویروئ تاسې (خلق) او منع کوئ تاسې (خلق) له لارې د الله هغه څوک چې ایمان راوړي په الله باندې، او لټوئ تاسې دې (لارې) ته کوږوالی (عیب).

تفسیر: پر لارو ناستې دوه سببونه درلودل (لرل): يو له تلونکو، راتلونکو، او مسافرينو څخه په ظلم او جبر اموال او اسباب اخيستل، او بل د شعيب عليه السلام له ملاقاته او د الله تعالى له توحيد او دين څخه د مؤمنانو او نورو خلکو منع کول، او د الهي دين په نسبت د عيب لټولو او اعتراض کولو په فکر کې اوسېدل.

وَاذْكُرُوا إِذْ كُنْتُمْ قَلِيلًا فَكَثَّرَكُمْ ۖ وَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ﴿٨٦﴾

او ياد کړئ تاسې هغه وخت چې وئ تاسې لږ (په سړيو او مالونو کې) نو ډېر کړئ (الله) تاسې، او وګورئ تاسې چې څرنګه شو عاقبت (بده خاتمه) د فساد کوونکو (چې وو پخوا له تاسې).

تفسیر: يعنې په سړيو او په دولت دواړو کې تاسې لږ وئ، الله تعالى تاسې ته له دواړو خواوو نه تزيید در په برخه کړ، ستاسې شمېر هم زيات شو، او د شتو او دولت خاوندان هم شوئ، تاسې د الله تعالى د دې احساناتو شکر ادا کړئ ! او د پاک الله شکر هلته ادا کيږي؛ چې تاسې د خالق تعالى او د «مخلوق الله» حق په ښه شان سره وپېژنئ ! او قولا او عملا په اصلاحاتو کې مشغول اوسئ، او په نعمتونو مغرور نه شئ ! او د فساد کوونکو او خرابي اچوونکو هغه انجام چې پخوا له دې نه واقع شوی دی؛ هغه تل تر سترګو لاندې ونيسئ، او د الله تعالى له انتقام او نيولو څخه تل ووېرېږئ.

وَإِنْ كَانَ طَائِفَةٌ مِنْكُمْ آمَنُوا بِالَّذِي أُرْسِلْتُ بِهِ وَطَائِفَةٌ لَمْ يُؤْمِنُوا فَاصْبِرُوا حَتَّىٰ يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَنَا ۚ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ ﴿٨٧﴾

او که وه يوه طائفه له تاسې چې ايمان يې راوړی وو په هغه شي چې رالېږلی شوی يم زه په هغه سره، او (وه بله) طائفه چې ايمان يې نه وو راوړی (عنادا)؛ نو صبر کوئ تاسې (ای مؤمنانو !) تر هغه پورې چې حکم (فيصله وکړي) الله په منځ څمونږ کې، او هم دی خير (بهتر) دی له ټولو حکم (فيصله) کوونکو (چې ظلم نشته د ده په حکم کې).

قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لَنُخْرِجَنَّكَ يَا شُعَيْبُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَكَ مِنْ قَرْيَتِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا ۚ قَالَ أَوَلَوْ كُنَّا كَارِهِينَ ﴿٨٨﴾

وويل مشرانو هغو چې کبر (او سرکشي) يې کړې وه (له ايمان څخه) له قومه د دغه شُعيب خامخا وباسو مونږ تا (ای شُعيبه !) او هغه کسان (هم درسره وباسو) چې ايمان يې راوړی دی له تا سره له (دې) کلي (ښار) څمونږ څخه، يا خامخا به راګرځئ تاسې دين څمونږ ته، نو وويل (شعيب): «آيا (ګرځو به مونږ ستاسې دين ته) او اګر که اوسو مونږ ناخوښه (هم، بلکه نه ګرځو !).

تفسیر: «عود» د يوه شي څخه وتل او بيا د هغه په لوري بېرته ورتللو ته واي، د شُعيب عليه السلام د ملګرو په نسبت دغه لفظ حقيقتاً صادقېدی شي، ځکه چې هغوی له کفره وتلي او په اسلام کې داخل شوي وو، نو پخپله د شعيب عليه

السلام په نسبت دغه تصور له سره نشي کېدی؛ چې (معاذ الله) دی لو مړی د کفارو په ملت کې داخل وو، او بیا مسلمان شوی دی، لا محاله، یا خو به د شُعیب علیه السلام په اعتبار دغه خطاب تغلیبي وي، یعنې د عامو مؤمنانو په حق کې هغه الفاظ چې استعمال شوي دي، غالبه اکثریت یې مرجع ګڼلی دی، او د شعیب علیه السلام لپاره یې بېل الفاظ نه دي اختیار کړي، یا دغه لفظ د شُعیب علیه السلام په حق کې د کفارو په زعم سره موافق ویلی شوی دی، ځکه چې پخوا له بعثته تر هغه وخته پورې چې شُعیب علیه السلام خپل دعوت او تبلیغ نه وو شروع کړی، نو د مدین د خلقو د کفریاتو په متعلق د ده د سکوت له لیدلو ځنې ښايي دغو کفارو ته به داسې ګومان پیدا شوی وي، چې دی هم ځمونږ له حاله سره شامل او ځمونږ په طور او طریقې راضي او خوښ دی، یا «عود» مجازا د مطلق صیرورت په معنی واخیست شي کما قاله بعض المفسرین.

قَدِ افْتَرَيْنَا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا إِنْ عُدْنَا فِي مِلَّتِكُم بَعْدَ إِذْ نَجَّانَا اللَّهُ مِنْهَا ۚ وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ رَبُّنَا ۚ وَسِعَ رَبُّنَا كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ۚ عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا ۚ رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ ﴿٨٩﴾

په تحقیق به تړلي وي مونږ پر الله دروغ (بهتان) که وګرځو مونږ په دین د تاسې کې وروسته له هغه چې نجات راکړ مونږ ته الله له هغه (دین) نه، او نه ښايیږي مونږ ته دا چې بېرته وګرځو په هغه (دین) کې مګر کله چې اراده وفرمايي الله چې رب ځمونږ دی، احاطه کړې ده رب ځمونږ پر هر شي له جهته د علمه، (خاص) پر الله توکل کړی دی مونږ، ای ربه ځمونږه ! فیصله وکړه په منځ ځمونږ او په منځ د قوم ځمونږ کې په حقه سره، او هم دا ته یې غوره بهتر د فیصله کوونکو.

تفسیر: باطل او دروغ مذهب ته رښتیا ویل پر الله تعالی افتراء او بهتان تړل دي، نو بیا د یو جلیل القدر نبي او د هغه مخلصو تابعانو ځخه کله داسې ممکن دي؛ چې هغوی «معاذ الله» له رښتیا ځخه وتلي د دروغو په لوري بېرته ولاړ شي، او خپلې ټولې رښتینې دعواګانې چې د خپل حقانیت او د الله له لوري د خپل مأمور کېدلو په باره کې یې کولې؛ دروغ او افتراء وګڼي !.

﴿بَعْدَ إِذْ نَجَّانَا اللَّهُ مِنْهَا﴾: «وروسته له هغه چې نجات راکړو مونږ ته الله له هغه دین نه»، ځینو ته یې له ابتداء ځخه نجات ورکړی وو، چې له سره په هغه دین کې نه دي داخل شوي لکه شُعیب علیه السلام، او ځینې یې وروسته له دخوله د هغه ځخه ایستلي او نجات یې ور په برخه کړی وو، لکه د هغې زمانې عام مؤمنان.

﴿وَمَا يَكُونُ لَنَا أَن نَّعُودَ فِيهَا﴾ الآیه - «او نه ښايیږي مونږ ته دا چې بېرته وګرځو هغه دین کې» یعنې په خپل اختیار یا ستاسې په اکراه او اجبار سره، ممکن نه دي چې مونږ «معاذ الله» د کفر په لوري لاړ شو، هو ! که فرضا د الله تعالی مشیئت ځمونږ د یوه تن په نسبت داسې وشي؛ نو د ده اراده هیڅوک نشي اړولی، که دهغه د حکمت اقتضاء همداسې وشي؛ نو هلته هیڅوک هیڅ شی نشي ویلی، ځکه چې د الله تعالی علم پر ټولو مصالحو او حکمتونو محیط دی، په هر حال ستاسې له ویرولو ځخه مونږ له سره نه ویرېږو، ولې چې ځمونږ پوره اعتماد او اعتقاد او ډاډینه (یقین) پر یوه الله جل جلاله دی، د بل چا په خوښه او غوښتنه سره هیڅ یو شي کېدونکی نه دی، هر شی چې کیږي فقط د پاک الله په مشیئت او د ده د محیط علم تر اثر لاندې به کیږي، همدا ده چې مونږ د خپلو او ستاسې د فیصلې لپاره د هغه لوی دربار ځخه غوښتنه او دعاء کوو، ځکه چې د داسې یوه قادر، علیم، حکیم الله له فیصلې ځخه بله کومه فیصله نشي غوره کېدی.

وَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ لَئِنِ اتَّبَعْتُمْ شُعَيْبًا إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَاسِرُونَ ﴿۹۰﴾

او وویل مشرانو هغو چې کافران شوي وو له قومه د دغه شعیب: قسم دی خامخا که متابعت وکړ تاسې د شعیب؛ بېشکه تاسې به په دغه وخت کې خامخا له زیان کارانو یئ.

فَأَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴿۹۱﴾

نو ونیول دوی زلزلې (په توره تیاره کې او جبرئیل هم پرې چیغه وکړه) نو وګرځېدل دوی (ګهیځ ـ سهر وختي) په کورونو خپلو کې مړه پرمخي پراته.

تفسیر: د متعددو آیتونو له مجموعې څخه ظاهرېږي، چې پر دوی باندې درې ډوله عذابونه لېږلي شوي وو: (۱): ظُلّه. (۲) صیحه. (۳) رجفه، یعني ړومبی وربځې پر دوی باندې د ځمکې مخ داسې تک تور وګرځاوه؛ چې په هغه کې د اور بخرکي او لمبې هم وې، بیا د آسمان له لوري سخت ویروونکي زړه خوځوونکي غږونه واورېدل شول، او سم له هغه سره د ځمکې له خوا سخته زلزله هم څرګنده (ښکاره) شوه (ابن کثیر).

الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۚ الَّذِينَ كَذَّبُوا شُعَيْبًا كَانُوا هُمُ الْخَاسِرِينَ ﴿۹۲﴾

هغه کسان چې تکذیب یې کړی وو د شُعیب (داسې هلاک شول) لکه چې له سره نه وو اوسېدلي په دغو (کورونو خپلو) کې، هغه کسان چې تکذیب یې کړی وو د شُعیب؛ وو همدوی زیان کاران (چې په دنیا کې مردار او په عُقبا کې په انګار شول).

تفسیر: دوی شُعیب علیه السلام او تابعان یې له کلي څخه په ویستلو سره ویرولي وو، خو دوی نه پخپله ژوندي پاتې شول، او نه د دوی هغه کلي او ښارونه ودان، او هغو خلقو چې تل به یې ویل: «د شُعیب علیه السلام اتباع خراب کېدونکي دي»؛ هغوی پخپله وران، خائبان او خاسران شول، کله چې شعیب علیه السلام د عذاب علائم ولیدل، نو د خُروج اراده یې وکړه لکه چې فرمایي:

فَتَوَلَّىٰ عَنْهُمْ وَقَالَ يَا قَوْمِ لَقَدْ أَبْلَغْتُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَنَصَحْتُ لَكُمْ ۖ فَكَيْفَ آسَىٰ عَلَىٰ قَوْمٍ كَافِرِينَ ﴿۹۳﴾

نو مخ وګرځاوه شعیب له دوی څخه او وویل: ای قومه ځما ! خامخا په تحقیق رسولي دي ما تاسې ته پیغامونه د رب خپل، او پند مې درکړ تاسې ته (پس تاسې ایمان را نه ووړ)؛ نو څرنګه به زه خپه شم پر (هلاک کېدلو د) قوم کافرانو (بلکه نه خپه کېږم).

تفسیر: یعنې اوس هغوی هلاک شوي دي، نو هغو پسې غمجن کېدل او ارمان کول فائده نه رسوي، ځکه چې دوی ته ډېر مؤثر پندونه ورکړی شوي دي، مګر دوی هیڅ یوې خبرې ته غوږ کېنښود، او له هیچا څخه یې وانه ورېده.

وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِّن نَّبِيٍّ إِلَّا أَخَذْنَا أَهْلَهَا بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُونَ ﴿۹۴﴾ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتَّىٰ عَفَوا وَّقَالُوا قَدْ مَسَّ آبَاءَنَا الضَّرَّاءُ وَالسَّرَّاءُ فَأَخَذْنَاهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۹۵﴾

او نه وو لېږلی مونږ په هیڅ قریه (ښار) کې هیڅ نبي (چې دوی یې تکذیب کړی وي) مګر وبه نیول مونږ اهل د هغې (قریې) په سختیو (لکه فقر) او تکلیفونو (لکه مرض) لپاره د دې چې دوی زاري

(عاجزي) وکړي (ایمان راوړي). بیا بدله کړه مونږ په ځای د بدئ (سختئ) کې نیکې (آساني) تر هغه پورې چې ډېر شول (هم يې مال هم يې سړي) او وویل دوی (په ناشکرئ) چې: په تحقیق رسېدلې وې پلرونو ځمونږ ته سختي او خوشالي (په شان ځمونږ، او دغه د زماني عادت دی، کله چې دوی ذاهل او غافل شول)؛ نو ونیول مونږ دوی ناڅاپه او دوی به نه پوهېدل (چې پر مونږ به عذاب راشي).

تفسیر: «که بنده ته په دنیا کې د ګناه سزا ورسیږي؛ نو هیله (امید) دی چې دی به توبه وکړي، او کله چې له ګناه څخه ضرر و نه ویني، یعني په نتیجه کې يې نیکي ولیده؛ نو دغه د الله تعالی هېرول (او په تأخیر غورځول او استدراج) دی. نو دلته د هلاکت وېره ده، لکه چې څوك زهر وخوري، سمدلاسه کانګې (قی) وکړي؛ نو د روغتیا هیله (امید) پیدا کیږي، او که په معده کې يې پاتې شي، نو کار له کاره تیریږي.

وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْقُرَىٰ آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِم بَرَكَاتٍ مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَٰكِن كَذَّبُوا فَأَخَذْنَاهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۹۶﴾

او که خلقو د دې کلیو (ښارونو) ایمان راوړی وی، او تقوی يې (غوره) کړې وی؛ نو خامخا پرانیستلي به وی مونږ پر دوی باندې (دروازې د) برکتونو له لوري د آسمانه (د باران په اورولو) او له (لوري) د ځمکې (په زرغونولو د محصولاتو)، ولیکن نسبت د دروغو وکړ دوی (انبیاوو ته)؛ نو ونیول مونږ هغوی په سبب د هغو چې وو دوی چې کول به يې (د کفر او معاصیو څخه).

تفسیر: یعنې مونږ له بندګانو سره څه ضد او دښمني نه لرو، هغه کسان چې په الهي عذاب کې اخته کیږي، دا د هغو د اعمالو نتیجه ده، که دغو خلقو ځمونږ رسولان قبول کړي وی، او د حق په مقابل کې يې غاړه ایښې وی، او له کفر او تکذیبه او له نورو مناهیو څخه يې ځانونه ژغورلي (بچ کړی) وی، او د تقوی لار يې غوره کړې وی؛ نو مونږ به دوی د آسمان او د ځمکې په برکاتو معمور کړي وی.

أَفَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا بَيَاتًا وَهُمْ نَائِمُونَ ﴿۹۷﴾ أَوَأَمِنَ أَهْلُ الْقُرَىٰ أَن يَأْتِيَهُم بَأْسُنَا ضُحًى وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿۹۸﴾

آیا نو په امن کې دي (بلکه مأمون نه دي) اهل د قریو (ښارونو) له دې نه چې راشي دوی ته عذاب ځمونږ د شپې، حال دا چې دوی اوده (غافل) وي. آیا په امن کې دي اهل د قریو (ښارونو) له دې نه چې راشي دوی ته عذاب ځمونږ په ځانښت کې، حال دا چې دوی په لوبو مشغول وي.

تفسیر: یعنې کله چې په عیش عشرت او آرامی کې غافل پراته وي، یا په دنیوي چارو کې او لهو او لعبو کې مشغول وي، نو په داسې وخت کې الهي عذاب دوی ناڅاپه چار چاپېر راګیر کړي، له دغې خبرې څخه دا خلق ولې بې خوفه او بې فکره شوي دي؟ حال دا چې د کومو اسبابو په بناء چې پر پخوانیو اقوامو د الله تعالی عذاب نازل شوی دی، هغه په دوی کې هم شته، یعنې کفر، تکذیب او له سید الأنبیاء صلی الله علیه وآله وصحبه وسلم سره مقابله او مجادله د دوی په طبایعو کې هم مرکوز او متمکن دي.

أَفَأَمِنُوا مَكْرَ اللَّهِ ۚ فَلَا يَأْمَنُ مَكْرَ اللَّهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْخَاسِرُونَ ﴿۹۹﴾

آیا نو په امن کې دي دوی (بلکه نه دي) له مکره (ناڅاپه نیولو) د الله، نو نه په امن کیږي له مکره د الله مګر قوم زیانکاران (په کفر او نفاق سره).

**تفسير:** د الله تعالی هغه ناځاپه نیول چې له دنیوي خوشالۍ او عیش څخه وروسته واقع کیږي؛ همغه يې په «مکر الله ـ د الله تعالی چال» سره تعبیر وفرمایل، او همغه خلق د الله تعالی له ناځاپه نیولو څخه غافل او بې فکره کیږي، چې په عیش او تنعم کې اخته شوي دي، او د دوی همدغه اعمال دوی په همغه لوري تېل وهلي دي، د مؤمنانو شان دا دی چې؛ دوی په هیڅ حال کې د الله تعالی له یاده نه غافلیږي.

أَوَلَمْ يَهْدِ لِلَّذِينَ يَرِثُونَ الْأَرْضَ مِن بَعْدِ أَهْلِهَا أَن لَّوْ نَشَاءُ أَصَبْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ ۚ وَنَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ۝١٠٠ تِلْكَ الْقُرَىٰ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَائِهَا ۚ وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا مِن قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الْكَافِرِينَ ۝١٠١

آیا نه ده ظاهر (ښکاره) شوې (بلکه ښکاره ده) هغو کسانو ته چې وارثان شوي دي د ځمکې (او اوسي په کې) وروسته (له هلاک) د اهل د هغې دا خبره که اراده فرمایلې وی مونږ (د نیولو د دوی)؛ نو رسولی به وو مونږ دوی ته (عذاب) په سبب د ګناهونو د دوی سره (لکه چې مو معذب کړي دي پخواني خلق)، او مهر به ولګوو پر زړونو د دوی؛ نو دوی به نه اوري (حق او نافع وعظ په اورېدلو سره). دغه قریې (او ښارونه د تېر شویو امتونو) بیانوو مونږ پر تا له ځینو حالاتو د دې (قریو)، او هرومرو (خامخا) په تحقیق راوړې وې دوی ته رسولانو د دوی ښکاره معجزې؛ نو نه وو (له شانه) د دوی چې ایمان راوړي په هغه شي چې نسبت د دروغو يې (ورته) کړی وو پخوا (له همدغو معجزاتو)، همدارنګه (لکه مهر اېښودل پر زړونو د پخوانیو کفارو) مهر لګوي الله په زړونو د کافرانو باندې.

**تنبیه:** له ﴿وَلَقَدْ جَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ﴾ څخه معلومه شوه، هغه انبیاء علیهم السلام چې قوم د نوح ـ عاد ـ ثمود ـ قوم د لوط او اهل مدین او نورو ښارونو او کلیو ته مبعوث شوي وو؛ هغوی ګرد د بیّناتو (ښکاره دلائلو) لرونکي وو، او له واضحو دلائلو معجزاتو سره راغلي وو، نو بیا د هود علیه السلام د قوم دغه وینا چې ﴿يَا هُودُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ﴾ الآیه ـ یوازې د تعنّت او عناد له لارې ده.

وَمَا وَجَدْنَا لِأَكْثَرِهِم مِّنْ عَهْدٍ ۖ وَإِن وَجَدْنَا أَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِينَ ۝١٠٢

او نه دی موندلی مونږ لپاره د زیاترو د دوی له (وفا په) عهد، او بېشکه موندلي دي مونږ زیاتره د دوی خامخا؛ فاسقان (ماتوونکي د عهد).

**تفسير:** له عهد ځنې ممکن دی چې عام عهدونه مراد وي، یا به خاص د ﴿أَلَسْتُ﴾ عهد اراده کړی شوي وي، یا به هغه عهد وي چې د مصائبو او سختیو په وخت کې يې کوي، چې دغه سختي که له ما ځنې لرې شي؛ نو زه به ایمان راوړم، یا به په سمه لاره درومم، لکه چې فرعونیانو به ویل: ﴿لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ۝ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَىٰ أَجَلٍ هُم بَالِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ﴾ (۹ جزء د الأعراف سورت (۱۳۴) ایت (۱۶) رکوع).

ثُمَّ بَعَثْنَا مِن بَعْدِهِم مُّوسَىٰ بِآيَاتِنَا إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ فَظَلَمُوا بِهَا ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِينَ ۝١٠٣

بیا ولېږه مونږ وروسته له دغو (رسولانو) موسی سره له (نهو) معجزو ځمونږ فرعون (د مصر) او اتباعو د ده ته؛ نو ظلم وکړ (کافر شول) دوی په هغو (معجزاتو)، نو وګوره څرنګه شو عاقبت (آخره خاتمه) د مفسدینو.

وَقَالَ مُوسَىٰ يَٰفِرْعَوْنُ إِنِّي رَسُولٌ مِّن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿۱۰۴﴾ حَقِيقٌ عَلَىٰٓ أَن لَّآ أَقُولَ عَلَى اللَّهِ إِلَّا الْحَقَّ ۚ قَدْ جِئْتُكُم بِبَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ فَأَرْسِلْ مَعِيَ بَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ﴿۱۰۵﴾

او وويل موسی: ای فرعونه ! بېشکه زه رسول يم له (لوري) د رب د عالميانو. قائم ثابت ټينګ ولاړ يم پر دغه خبره چې نه وايم پر الله مګر (وايم) حق (رښتيا)، په تحقيق راوړې ده ما تاسې ته څرګنده (ښکاره) معجزه له (لوري د) رب ستاسې، نو ولېږه له ما سره بني اسرائيل (چې زه يې بوځمه شام ته).

تفسير: اکثرو مفسرينو د «حقيق» معنى په جدير «لايق» يعني په وړ سره کړې ده، د (على) معنى يې په (باء) سره اړولې ده، يعني «ځما له شانه سره همدغه خبره وړ ده؛ چې د الله تعالى په لوري کومه ناحقه او غلطه خبره ونه وايم».

ځينې د (حقيق) معنى په (حريص) کوي، ليکن محقّق شيخ الهند «رحمه الله» د «حقيق» معنى «قايم او ثابت» فرمايلې ده، چې مطلب يې داسې کيږي، چې بې له ادنى تزلزل او تذبذب په ډېرې مضبوطى او استقلال سره پر دې قائم او ثابت يم، چې بې له رښتيا هيڅ يو شى له خپلې ژبې ونه باسم، او د الله تعالى پيغام بې له تزييد او تنقيص څخه تاسې ته دوررسوم، او ستاسې د تخويف او تکذيب له سببه لږ څه متردد او متذبذب نه شم.

قَالَ إِن كُنتَ جِئْتَ بِـَٔايَةٍ فَأْتِ بِهَآ إِن كُنتَ مِنَ الصَّٰدِقِينَ ﴿۱۰۶﴾ فَأَلْقَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِينٌ ﴿۱۰۷﴾

وويل (فرعون): که يې ته (ای موسی !) چې راوړې دې وي کومه معجزه؛ نو راحاضره (راوړاندې) کړه هغه (ماته) که يې ته له صادقانو (رښتينو په دې دعوی خپله کې). نو وغورځوله (موسی) همسا خپله؛ نو له واره هغه اژدها وه ښکاره (چې په کې نه وو شک د چا).

وَنَزَعَ يَدَهُۥ فَإِذَا هِيَ بَيْضَآءُ لِلنَّٰظِرِينَ ﴿۱۰۸﴾

او وويست (موسی نبی) لاس خپل (چې يې په ګرېوان کې کېښ تخرګ - ترخ ته وروړی وو)؛ نو ناڅاپه هغه تک سپين (ځليدونکی د تعجب موجب) وو لپاره د کتونکو.

تفسير: يعني خپل لاس يې په خپل ګرېوان کې ننويست، او په خپل تخرګ (ترخ) کې يې ټينګ ونيو، او بېرته يې وويست؛ نو ګردو (ټولو) مخلوقاتو په خپلو رڼو سترګو سره وليد، چې لاس يې فوق العاده تک سپين، ډېر ځلېدونکی نوراني وو، چې د لمر په رڼا غالب شو، دغه رڼا او ځلېدل د برص د ناروغی يا د بل کوم شي څخه نه وو.

قَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِ فِرْعَوْنَ إِنَّ هَٰذَا لَسَٰحِرٌ عَلِيمٌ ﴿۱۰۹﴾

وويل مشرانو له قومه د فرعونه (سره له فرعونه) چې بېشکه دا (موسی) خامخا جادوګر دی ډېر پوه (چې له همسا نه اژدها او له لاس نه لمر جوړوي).

تفسير: معلومېږي چې فرعون د موسی عليه السلام له معجزاتو څخه ډېر زيات وويرېده، او ګرد (ټول) خلق يې راغونډ کړل، او لومړی ده پخپله بالذات (کما في الشعراء) او بيا د ده له لوري د ده نورو مشرانو خپلې آراء داسې اظهار کړې؛ چې «معاذ الله» موسی عليه السلام کوم لوی جادوګر او ماهر ساحر دی، ځکه هغه خوارق چې له موسی عليه السلام څخه ظاهر او څرګند شوي وو، د دوی له حسّياتو سره سم د هغو لپاره له جادو او سحر څخه پرته (علاوه) بل کوم بهتر تعبير او توجيه دوی نشوه موندلی.

يُرِيدُ أَن يُخْرِجَكُم مِّنْ أَرْضِكُمْ ۖ فَمَاذَا تَأْمُرُونَ ﴿١١٠﴾

غواړي (موسى) دا چې وباسي تاسې (اى قبطيانو !) له ځمکې ستاسې (چې مصر دى)، نو (وويل فرعون مشرانو ته:) څه امر (مصلحت او مشوره) کوئ تاسې؟ !

تفسير: يعنې موسى د سحر او د کوډګرۍ په عجيبې او غريبې نندارې سره خلق خپل لوري ته متمائل کوي، او په پاى (آخر) کې په وطن کې خپل اثر او اقتدار زياتوي، او د سبطيانو د آزادۍ او حمايت په نامه ګرد (ټول) قبطيان چې د دې وطن اصلي اوسيدونکي دي؛ د دوى له ملك او وطن (مصر) څخه بې برخې کوي، تاسې دغه ګرد (ټول) حالات تر خپلو سترګو لاندې ونيسئ ! او بيا مشوره راته راکړئ ! چې څه وکړو.

قَالُوٓا۟ أَرْجِهْ وَأَخَاهُ وَأَرْسِلْ فِى ٱلْمَدَآئِنِ حَٰشِرِينَ ﴿١١١﴾ يَأْتُوكَ بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴿١١٢﴾

وويل (قبطيانو فرعون ته): مهلت ورکړه دغه (موسى) ته او ورور د ده ته، او ولېږه په ښارونو کې راټولوونکي (د ساحرينو). چې راولي تاته هر ساحر (جادوګر) ډېر پوه (ماهر جادوګر).

تفسير: د جرګې او مشورې په پاى (آخر) کې دغه خبره د ګردو (ټولو) له لوري ومنله شوه، چې له فرعون څخه دې استدعاء وکړه شي، چې د دغو دواړو (موسى او هارون) په معامله کې له سره تلوار ونه کړه شي، د دوى د ماتولو لپاره ډېره ښه او مؤثر ځواب داسې کېدى شي، چې محصلان دې ګردو (ټولو) ولاياتو او حکومتونو (پرګنو) ته ولېږل شي، او له ګردو (ټولو) ملکو څخه دې ډېر ښه کوډګران او خورا (ډېر) لوى ساحران او جادوګران چې په سحر کې له ده څخه له حده تېر ماهر (سحّار) وي؛ سره راټول کړل شي، نو بيا دې د دوى له هغو سره يوه ښه مقابله وشي، لکه چې همداسې وکړل شول.

وَجَآءَ ٱلسَّحَرَةُ فِرْعَوْنَ قَالُوٓا۟ إِنَّ لَنَا لَأَجْرًا إِن كُنَّا نَحْنُ ٱلْغَٰلِبِينَ ﴿١١٣﴾

او راغلل ساحران (جادوګران) فرعون ته، وويل دغو جادوګرانو (فرعون ته) چې: آيا بېشکه وي به مونږ ته خامخا ښه مزدوري که شو مونږ همدا مونږه غلبه کوونکي (پر موسى).

تفسير: د فرعون ساحرينو د ﴿إِنَّ لَنَا لَأَجْرًا﴾ په ويلو سره په لومړني مجلس کې دغه خبره څرګنده (ښکاره) کړه چې د انبياوو عليهم السلام لفظ ﴿قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ﴾ وي، او دوى د کومې کسبګرې او کاريګرې طائفې څخه نه دي.

قَالَ نَعَمْ وَإِنَّكُمْ لَمِنَ ٱلْمُقَرَّبِينَ ﴿١١٤﴾

وويل (فرعون ساحرانو ته): هو ! (وي به تاسې لره مزدوري) او بېشکه تاسې به خامخا اوسئ ځما له مقربينو څخه (په مرتبه کې).

تفسير: يعنې مزدوري څه شى دى؟ هغه خو هرومرو تاسې ته درکوله کېږي، برسېره پر دې تاسې ځما د دربار په مقرّبينو کې هم داخليدونکي يئ.

قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ نَحْنُ ٱلْمُلْقِينَ ﴿١١٥﴾

وويل جادوګرانو چې اى موسى ! يا خو ته وغورځوه (همسا خپله) او يا دا دى چې شو مونږ هم دا مونږ (ړومبې) غورځوونکي؟ (د پړيو او همساګانو خپلو).

قَالَ اَلْقُوْا ۚ فَلَمَّاۤ اَلْقَوْا سَحَرُوْۤا اَعْيُنَ النَّاسِ وَاسْتَرْهَبُوْهُمْ وَجَآءُوْ بِسِحْرٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۱۶﴾

وويل موسی ساحرانو ته (تكرّماً تسامحاً معتمداً على الله) چې وغورځوئ تاسې خپل پړي او همساګانې، نو کله چې وغورځول دوی؛ نو جادو يې وکړ پر سترګو د خلقو او وويرول دوی (دا خلق)، او راتله وکړه دوی په جادو لوی سره.

تفسير: يعني د کوډو او سحر په زور د ګردو ننداره کوونکو سترګې وتړلې شوې، او پر ټولو حيرت طاري شو، او عام خلق وويربدل، په بل آيت کې راغلي دي، چې هغوی خپل پړي او همساګانې پر ځمکه وغورځولې، چې د هغو په اثر په هغې ځمکې کې پرته له ځغليدونکو او يو په بل باندې سوريدونکو مارانو ځنې بل هيڅ شی په نظر نه راته، ﴿يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى﴾، له دغو آيتونو ځنې ښکاره شوه چې د فرعون ساحرين په دغه وخت کې کومه شعبده چې ښووله؛ په هغې کې له سره د ماهيّت قلب نه دی واقع شوی، بلکه هغه تش يو تخيّل او نظر بندي وه.

وَاَوْحَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسٰۤى اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ ۚ فَاِذَا هِيَ تَلْقَفُ مَا يَاْفِكُوْنَ ﴿۱۱۷﴾ فَوَقَعَ الْحَقُّ وَبَطَلَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱۸﴾ فَغُلِبُوْا هُنَالِكَ وَانْقَلَبُوْا صٰغِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ وَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ سٰجِدِيْنَ ﴿۱۲۰﴾ قَالُوْۤا اٰمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۱﴾ رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

او وحي (حکم) مو ولېږه موسی ته داسې چې وغورځوه ته همسا خپله (بيا ده وغورځوله او ښامار شو)، نو ناڅاپه دغې همسا ښوی تېرول (نغړودل) هغه شيان چې جوړ کړي وو دغو (جادوګرانو په جادو سره) نو ثابت (او د پاسه) شو حق، او باطل (ورک) شو هغه څه چې وو دوی چې کول به يې. نو مغلوب شول دا (ساحران) په هغه ځای کې او وګرځېدل دوی خوار سپک. او وغورځول شول ساحران په دې حال کې چې سجده کوونکي وو. وويل جادوګرانو ايمان مو راوړی دی په رب د عالميانو. (په) رب د موسی او (رب د) هارون.

تفسير: د ﴿وَاُلْقِيَ السَّحَرَةُ﴾ لفظ دا راښيي، چې داسې يو قوي حال پر دوی باندې طاري شوی وو، چې د هغه په ليدلو سره دوی ته پرته له استسلام څخه بله چاره نشوه پاتې، دلته د الهي رحمت څه ستاينه او توصيف وکړ شي؟ وګورئ هغه خلق چې همدا اوس د الله تعالی له انبياوو عليهم السلام سره د جنګ او جګړې او مقابلې لپاره درېدلي وو؛ وروسته له دې نه چې خپل سرونه يې له سجدې څخه پورته کړل، أولياء الله شوي وو، (چې هغه همدغه ساحران د فرعون وو).

﴿قَالُوْۤا اٰمَنَّا﴾ الآيه - «وويل جادوګرانو: ايمان مو راوړی دی په رب د عالميانو، رب د موسی او رب د هارون»، څرنګه چې فرعون خپل ځان ته ﴿اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى﴾ ويل، نو دلته له ﴿بِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ﴾ سره د ﴿رَبِّ مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ﴾ ويلو ته هم ضرورت پيدا شو، په دې سره دغه لوري ته هم اشاره وشوه، چې بېشکه د ګرد جهان پروردګار او پالونکی همغه ذات دی چې د خپل خاص قدرت سره يې موسی او هارون عليهما السلام بې د ظاهري اسبابو له توسط څخه د دنيا پر لويو متکبرينو په داسې يو محيّر العقول صورت على رؤوس الأشهاد غالب او بريالي (فتحمند) وګرځول.

قَالَ فِرْعَوْنُ اٰمَنْتُمْ بِهٖ قَبْلَ اَنْ اٰذَنَ لَكُمْ ۚ اِنَّ هٰذَا لَمَكْرٌ مَّكَرْتُمُوْهُ فِي الْمَدِيْنَةِ لِتُخْرِجُوْا مِنْهَاۤ اَهْلَهَا ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

وويل فرعون: آيا ايمان راوړ تاسې په دغه (موسی) پخوا له هغه چې اذن (اجازه) وکړم زه تاسې ته، بېشکه دا کار خامخا يو مکر (فرېب) دی چې مکر (بنا) کړی دی تاسې هغه په دې ښار

کې؛ لپاره د دې چې وباسئ تاسو له دې ښاره اهل د دې، نو ژر به پوه شئ تاسې (چې زه څه درسره کوم؟).

**تفسیر:** یعني دغه تاسې خو د کوډګرانو (ساحرانو) یوه غوره جرګه (اتحادیه) یئ، غالبا موسی ستاسې لوی استاذ دی، چې هغه مو د مخه استولی دی، او بیا تاسو ګردو هغه ته ځانونه پرېږدې او مغلوب کړل، چې عام خلق ترې متأثر او وډار شي، د دغې ژورې پلمې (پلان) او پټ سازش نه ستاسې مقصود دا دی چې د دغه وطن اصلي اوسیدونکي قبطیان ترې وباسئ، او تاسې سبطیان او اسرائیلیان په خپله پرې متصرفان شئ، او د مصر سلطنت اشغال کړئ، دغه وینا فرعون ځکه وکړه، چې پر خپلې دغې لویې ماتې پرده واچوي، او له خلقو څخه ناپوهان او بېراګان (بې عقله) جوړ کړي: ﴿فَاسْتَخَفَّ قَوْمَهُ فَأَطَاعُوهُ﴾ مګر له هغه شي نه چې فرعون او فرعونیان ویرېدل؛ بالآخره همغه د الله تعالی په تقدیر ورپېښ شو: ﴿وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُمْ مَا كَانُوا يَحْذَرُونَ﴾ (۲۰ جزء د القصص (۶) آیت (۱) رکوع).

لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ ثُمَّ لَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿۱۲۴﴾ قَالُوا إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا مُنْقَلِبُونَ ﴿۱۲۵﴾

خامخا به پرې کړم زه هرومرو (خامخا) لاسونه ستاسې او پښې ستاسې سره مخالفې، بیا به خامخا په دار کړم زه ضرور تاسې ټول. وویل جادوګرانو: بېشکه مونږ په لوري د رب خپل بېرته ورتلونکي یو (پس له مرګه نو پروا نه لرو، ستا له دغه تعذیبه).

**تفسیر:** ساحرین د توحید او د لقاء الله د تمنّا په جذبه کې وو، جنت او دوزخ ګواکې د دوی سترګو ته حاضر وو؛ نو ځکه دوی له دغو ویرولو او ډارولو څخه بیخي بې خوفه او بې پروا شوي وو، دوی په زړورتیا او لوړه وینا سره وویل: «مونږ هیڅ پروا نه کوو، که ته هره سزا چې مونږ ته راکړې؛ هغه پر مونږ تېرېږي، او وروسته له هغه مونږ د پاک الله دربار ته حاضرېږو، ای فرعونه ! ته دې خپل پټ او سیاست وساته ! پر مونږ باندې د اخروي عذاب په مقابل کې دنیوي عذاب ډېر آسان دی، د پاک الله د رضاء او خوښې او رحمت په لاره کې ډېر لوی لوی تکالیف او مصائب هم د عاشقانو لپاره آسان دي.

وَمَا تَنْقِمُ مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِآيَاتِ رَبِّنَا لَمَّا جَاءَتْنَا ۚ رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَتَوَفَّنَا مُسْلِمِينَ ﴿۱۲۶﴾

او عیب نه ګڼې (ته ای فرعونه !) له مونږ مګر دغه کار چې ایمان راوړی دی مونږ په آیتونو د رب خپل کله چې راغله مونږ ته، ای ربه ځمونږ ! راتوی کړه پر مونږ صبر، او مړه کړه مونږ په داسې حال کې چې مسلمانان یو (یعني خاتمه مو په اسلام کړه).

وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ ۚ
قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَاءَهُمْ وَنَسْتَحْيِي نِسَاءَهُمْ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ ﴿۱۲۷﴾

او وویل مشرانو له قوم د فرعون (فرعون ته) آیا (ته) پرېږدې موسی او قوم د ده لپاره د دې چې فساد وکړي دوی په ځمکه (په ملک د مصر) کې، او پرېږدي (عبادت) ستا او د خدایانو (بتانو) ستا؟ وویل فرعون: ژر به ووژنو مونږ ځامن د دوی (چې نسل یې ورک شي) او ژوندي به پرېږدو مونږ ښځې (لونړې) د دوی (خپل خدمت ته)، او بېشکه مونږ (قبطیان) د پاسه د دغو (سبطیانو) زورور یو.

تفسير: ﴿وَيَذَرَكَ وَءَالِهَتَكَ﴾: «او پرېږدي عبادت ستا او د معبودانو «بتانو» ستا؟»، فرعون خپل ځان لوی معرفي کړی وو، غالباً ده د دغه موهوم «علويّت» د ثبوت لپاره څه ادنی ارباب هم تجويز کړي وو، لکه چې د ﴿وَءَالِهَتَكَ﴾ کلمه د همدې مطلب مؤيده ده.

ځيني وايي چې: دغه بتان د غوايي او نورو اشياوو مجسّمې وې، ځيني وايي چې: په دغه کلمه يې لمر او ستوري اراده وو، د ځينو په نزد فرعون خپلې مجسمې روغې کړې وي، او د عبادت لپاره يې پر خلقو ويشلې وې، هر شی چې وو بلا ورپسې، خو د فرعون مقصدا دا وو، چې ګرد (ټول) خلق ده ته (رب أعلى) او نورو ته (أدنى رب) ووايي، او په ﴿مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِى﴾ ويلو سره به يې د الله تعالى د وجود نفي کوله ـ (العياذ بالله).

قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ ٱسْتَعِينُوا۟ بِٱللَّهِ وَٱصْبِرُوٓا۟ ۖ إِنَّ ٱلْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۖ وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿١٢٨﴾

وويل موسى قوم خپل ته (لپاره د تسلى) مدد وغواړئ له الله څخه، او صبر کوئ (په طاعت او مصيبت او له معصيت)، بېشکه چې دغه ځمکه خاص الله لره ده، وارث ګرځوي (الله) د دې (ځمکې) هغه څوک چې اراده وفرمايي له بندګانو خپلو څخه او عاقبت (ښه خاتمه) پرهېزګارانو ته (له کفر او معاصي څخه) ده.

قَالُوٓا۟ أُوذِينَا مِن قَبْلِ أَن تَأْتِيَنَا وَمِنۢ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ۚ قَالَ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى ٱلْأَرْضِ فَيَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴿١٢٩﴾

وويل بني اسرائيلو (موسى ته) چې: ايذاء رسولې شوې ده مونږ ته پخوا له هغه چې راغلی وې ته (ای موسى !) مونږ ته، او وروسته د هغه چې راغلې ته مونږ ته، وويل (موسى): نژدې ده چې رب ستاسې هلاک کړي دښمن ستاسې، او خليفه کړي تاسې په دغې ځمکې (ملک د مصر يا شام کې پس له هلاکه د قبطيانو)؛ بيا به وګوري (الله) چې څرنګه عمل کوئ تاسې (شکر کوئ که کفران، طاعت کوئ که عصيان؟ چې هغسې جزا درکړي).

تفسير: شاه صاحب وايي چې: «دغه کلام د مسلمانانو د آورولو لپاره نقل شوی دی، دغه سورت مکي دی، او په دغه وخت کې مسلمانان هم داسې مظلومان وو، د نورو د خبرو په منځ کې يې همداسې يو زېرى او بشارت دوی ته واوراوه.

وَلَقَدْ أَخَذْنَآ ءَالَ فِرْعَوْنَ بِٱلسِّنِينَ وَنَقْصٍ مِّنَ ٱلثَّمَرَٰتِ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٣٠﴾ فَإِذَا جَآءَتْهُمُ ٱلْحَسَنَةُ قَالُوا۟ لَنَا هَٰذِهِۦ ۖ وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَطَّيَّرُوا۟ بِمُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ ۗ أَلَآ إِنَّمَا طَٰٓئِرُهُمْ عِندَ ٱللَّهِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٣١﴾

او خامخا په تحقيق نيولي وو مونږ قوم د فرعون په کلونو د قحطى سره او په نقصان سره د مېوو؛ لپاره د دې چې پند واخلي دوی. نو کله چې به راغله دوی ته حسنه (ښېګڼه «فائده» پراخي او غنا) نو ويل به دوی چې مونږ لره ده هم دا (يعنې له مونږه سره لايقه ده دغه ښېګڼه «فائده») او که وبه رسېدله دوی ته سيئه (کومه بدحالي لکه قحط او فقر) نو بدفالي به يې نيوله په موسى باندې او په هغه چا چې وو به له ده سره (له مسلمانانو)، واورئ ! خبردار شئ ! بېشکه همدا خبره ده چې

سبب د بدفالۍ د دوی په نزد د الله دی، ولیکن زیات د دوی نه پوهیږي (په دې چې سبب يې د دوی اعمال دي).

وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿۱۳۲﴾

او ويل به دوی (موسی ته) هر شي چې راوړې ته مونږ ته هغه (شی) له دليل (معجزې) څخه لپاره د دې چې جادو وکړې ته پر مونږ باندې په هغه سره؛ نو نه يو مونږ تا لره تصديق کوونکي (په نبوت).

تفسير: د موسى عليه السلام د معجزو او د نبوت د دلائلو د ليدلو په وخت کې به دوی داسې ويل چې: هر څومره سخت جادو چې ته پر مونږ وکړې، او سم له خپله خياله سره هومره معجزې چې مونږ ته راوښيې؛ مونږ په هيڅ ډول ستا خبرې نه منو.

فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوفَانَ وَالْجَرَادَ وَالْقُمَّلَ وَالضَّفَادِعَ وَالدَّمَ آيَاتٍ مُفَصَّلَاتٍ فَاسْتَكْبَرُوا وَكَانُوا قَوْمًا مُجْرِمِينَ ﴿۱۳۳﴾

نو ولېږل مونږ (آفتونه په وار وار) پر دوی طوفان (د اوبو يا د مرګ) او ملخان او سپږې (يا وړوې يا کنې يا بروړې) او چونګښې (چيندخې) او وينې، حال دا (چې دغه شيان) دلائل وو واضح سره بېل بېل کړی شوي نو تکبر وکړ دوی او وو دوی قوم ګناهګاران.

تفسير: پس ولېږل مونږ پر دغو باندې پنځه آفتونه وار په وار:

(۱): د باران او سيلاو طوفان وو، چې اوه شپې او ورځې به باران پرله پسې پرې ورېده، چې د قبطيانو په کورونو او فصلونو کې دومره اوبه ودرېدې؛ چې په ولاړې به يې تر مرى رسېدې، نو دوی به شپه او ورځ ولاړ وو، او هلکان به يې په هسکو (وچتو) ځايونو کې کېنولي وو، او د سبطيانو کوټې به هم ورسره پيوستې وې، او په هغو کې به يو څڅکى اوبه هم نه ننوتلې، يا د طاعون له وجې د موت طوفان على اختلاف الأقوال.

(۲): ملخ وو، چې دا هم يوه هفته پرې مسلط وو، او د دوی فصلونه او باغونه او د کوټو تيران او لاړي يې ټول وخواړه، او د سبطيانو په کورونو کې يو هم نه وو ننوتلى.

(۳): کنې يا وړوې يا پياده ملخ وو، چې د دوی په طعام او په شرابو او په کتغ او نګولي کې به لوېدل، او په جامو کې به يې ګرځېدل، او چيچل به يې، او دا هم يوه هفته وو، له «قمل» څخه مراد بروړه «بټو که، پېټکه» منګوړ (خمنډک) او کنې وي لکه چې شيخ الهند «رحمه الله» هم ليکلي دي، يا سپږې يا هغه نور چنجيان دي؛ چې په غَلو، دانو، او مېوو «په تېره بيا په ګنيو» کې پيدا کيږي، او په هغو سره غله او نور خرابيږي، يا په بدن کې سپږې يا په کاليو (کپړو) کې او بزې (کويه) لويږي، يعنې د دوی په بدنونو او کاليو (کپړو) کې خوځندې او سپږې ولوېدې، او په غَلو کې يې بټو کې څرګندې شوې.

(۴): چونګښې (چيندخې) وې، او دا هم يوه هفته وې، چې په جامو او په طعام او د نګوليو په کټوو کې او په بسترو کې او په خولو د دوی کې په وخت د خبرو به وتې او ننوتې.

(۵) وينې وې، چې اوبه د دوی بيخې وينې شوې، تر دې حده پورې چې که قبطي او سبطي (اسرائيلي) به په يوه لوښي سره جمع شول، نو پر همغه يو جام کې به د سبطي طرفته اوبه او د قبطي طرف ته به وينې وې، او که فرعوني به

د اسرائيلي له خولې اوبه راوويستې، نو د ده په خوله کې به وينې شوې، په دې حال کې چې «دا پنځه واړه نښې وې، ځمونږ د قدرت جدا کړې شوې يو له بله، چې د هرو دوو تر منځه به يوه مياشت فاصله وه، او هره يوه چې به پرې راغله؛ نو ډېرې سختې سختې وعدې به يې وکړې، چې دا آفت را څخه لرې کړه، نو ايمان به دربانديې راوړو، بيا چې ترې پورته به شو؛ نو ويل به يې چې: ته ډېر لوی جادوګر يې، پس کبر وکړ دوی او سرکش شول له فرمانه ځمونږ، او وو دوی قوم مجرمان معاندان چې سره له ظهوره د آيتونو هم ايمان نه راوړي».

وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوا يٰمُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ لَئِنْ كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿۱۳۴﴾

او کله چې واقع شو پر دغو (فرعونيانو) کوم عذاب (له دغو ذکر شويو عذابونو) ويل به دوی: ای موسی ! دعا وکړه لپاره ځمونږ له رب خپل څخه په هغه سره؛ چې وعده يې کړې وه له تا سره، قسم دی خامخا که لرې کړې تا له مونږه دغه عذاب نو خامخا (مونږ) به ايمان راوړو هرومرو (خامخا) په تا او خامخا به ولېږو له تا سره بني اسرائيل (چې بېرته يې خپل وطن ته بوځې).

تفسير: يعني د دعاء هغه مؤثري طريقې چې پاک الله تاسې ته درښوولې دي؛ په همغه شان سره دعا وکړه ! يا د ﴿بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ﴾ مطلب دا دی چې د خپل نبوت په وسيله دعا وکړه ! ګواکې د عهد اطلاق پر نبوت وشو، او ممکن دی له ﴿بِمَا عَهِدَ عِنْدَكَ﴾ څخه هغه عهد مراد وي؛ چې انبياوو عليهم السلام په واسطه له اقوامو سره کولې شي، چې که تاسې له کفر او تکذيبه مخ واړوئ؛ نو الهي عذاب به هم له تاسې پورته کيږي. والله أعلم.

فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَىٰٓ أَجَلٍ هُمْ بٰلِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنْكُثُونَ ﴿۱۳۵﴾

نو کله چې لرې کړ مونږ له دوی څخه دغه عذاب (او مؤخر مو کړ) تر هغې نيټې پورې چې دوی رسيدونکي وو هغې ته؛ ناڅاپه دوی هغه وعده ماته کړه.

تفسير: يا خو له دې مودې څخه تر موت او تر غرقېدلو پورې موده مراد ده، يا ممکن له يوې بلا څخه وروسته د بلې بلا تر راتلو پورې وخت مراد وي.

فَانْتَقَمْنَا مِنْهُمْ فَأَغْرَقْنٰهُمْ فِي الْيَمِّ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِـَٔايٰتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غٰفِلِينَ ﴿۱۳۶﴾

پس اراده د بدل اخيستو وفرمايله مونږ لـه دوی څخه؛ نو غـرق کـړل مونږ دوی (ټول له ځرمې) په بحر (درياب کې) په سبب د دې چې دوی به تکذيب کاوه په آيتونو ځمونږ، او وو دوی له هغو (آيتونو ځنې) غافلان (چې فکر به يې په کې نه کولو).

تفسير: ځينو مفسرينو د «رجز» معنی په طاعون سره کړيده، لکه چې په ځينو احاديثو کې هم ددې لفظ اطلاق پر طاعون سره شوی دی، ليکن اکثرو مفسرينو دغه آيتونه د پخوانيو آيتونو بيان ګرځولی دي.

وَأَوْرَثْنَا الْقَوْمَ الَّذِينَ كَانُوا يُسْتَضْعَفُونَ مَشٰرِقَ الْأَرْضِ وَمَغٰرِبَهَا الَّتِي بٰرَكْنَا فِيهَا

او وروسته له پخوانيو قبطيانو څخه په ميراث ورکړه مونږ هغه قوم (د بني اسرائيلو) ته چې وو دوی چې کمزوري ګڼل کېدل په مشرقي (اطراف د) ځمکې او مغربي (اطراف د) ځمکې هغې چې برکت اچولی وو مونږ په هغې کې (چې شامات دي).

تفسیر: د اکثرو مفسرینو په نزد له دغې ځمکې څخه مراد د (شام) ملك دی، چې په هغه کې الله تعالی ظاهري او باطني ډېر برکات په ودیعت ایښي دي، ظاهر خو یې دا دی، چې ډېر زرغون، ودان، حاصل خېز، ښکلی، او خورا (ډېر) لوړ او ګټور (مملکت) دی، او باطن یې دا دی چې د ډېرو انبیاوو علیهم السلام مسکن ګرځولی شوی دی.

کله چې بني اسرائیل له مصر څخنې ووتل، نو تر یوې مودې پورې د «تیه» په صحرا (میره) کې سرګردانه ګرځېدل، لکه چې ذکر یې پخوا تېر شو، بیا له یوشع علیه السلام سره ملګري شول، او له «عمالقه» وو سره یې جهاد وکړ، او د خپلو پلرونو د ملک «شام» وارثان وګرځېدل.

ځینو مفسرینو له دغې ځمکې څخه مصر مراد کړی دی، یعنې د فرعونیانو له غرقولو څخه وروسته مونږ بني اسرائیل د مصر د حکومت وارثان وګرځول، چې په آزادۍ او خپلواکۍ او استقلال سره ترې متمتع شي او ګټور شي، کما قال الله تعالی: ﴿كَمْ تَرَكُوا مِن جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ۝ وَزُرُوعٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ۝ وَنَعْمَةٍ كَانُوا فِيهَا فَاكِهِينَ ۝ كَذَٰلِكَ ۖ وَأَوْرَثْنَاهَا قَوْمًا آخَرِينَ ۝﴾ (۲۵ جزء د دخان سورت له (۲۵) تر (۲۸) آیت پورې، (۱) رکوع)، ﴿وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا فِي الْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ الْوَارِثِينَ ۝ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَنُرِيَ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا يَحْذَرُونَ﴾ (۲۰ جزء د القصص سورت (۵ - ۶) آیت پورې، (۱) رکوع).

وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ بِمَا صَبَرُوا ۖ وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ ۝

او پوره شوه کلمه (او وفاء ته ورسېده وعده) د رب ستا چې نېکه ده (دا احسان) پر بني اسرائیلو په سبب د صبر کولو د دوی (پر ظلمونو د فرعونیانو)، او خرابې کړې مونږ هغه (کلکې ودانۍ) چې وې چې ودانولې به فرعون او قوم د ده، او هغه (پخې پخې ودانۍ) چې وو دوی چې لوړولې به دوی (هغه).

وَجَاوَزْنَا بِبَنِي إِسْرَائِيلَ الْبَحْرَ فَأَتَوْا عَلَىٰ قَوْمٍ يَعْكُفُونَ عَلَىٰ أَصْنَامٍ لَّهُمْ ۚ قَالُوا يَا مُوسَى اجْعَل لَّنَا إِلَٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ ۚ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ۝ إِنَّ هَٰؤُلَاءِ مُتَبَّرٌ مَّا هُمْ فِيهِ وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝

او تېر کړل مونږ بني اسرائیل له بحره، نو راغلل دوی پر یوه قوم چې تل به ولاړ وو په (عبادت د) بتانو چې وو دوی لره، نو وویل (بني اسرائیلو): ای موسی ! جوړ کړه مونږ لره (هم) یو معبود لکه چې دي دوی لره معبودان، وویل (موسی): بېشکه تاسې داسې یو قوم یئ چې نه پوهېږئ (چې بت پرستي د عاقلانو کار نه دی). بېشکه دغه (بت پرستان) هلاك (او مات) دی هغه دین چې دوی په هغه کې دي، او باطل (غلط) دی هغه عمل چې وي دوی چې کوي (یې).

ترجمه: ځینې وایي چې: دغه د (لخم) د قبیلې سړی وو، او ځینو (کنعاني عمالقه) د دې مصداق ګرځولي دي، وایي چې دغه بتان د غوا په شکل وو، والله أعلم.

کله چې بني اسرائیلو دغه بت پرستي ولیده؛ نو موسی علیه السلام ته یې وویل چې: «مونږ ته همداسې بتان جوړ کړه چې مونږ یې عبادت وکړو، لکه چې شته دوی ته بتان چې عبادت یې کوي»، نو وویل موسی علیه السلام: «بېشکه تاسې داسې قوم یئ چې ناپوهي کوئ چې بې له الله د بل چا عبادت هم روا ګڼئ»، یعنې د حق تعالی د عظمت له شان او د ده له تنزیه او تقدیس څخه تاسې بیخي ناپوه او جاهلان ښکارئ.

قَالَ اَغَيۡرَ اللّٰهِ اَبۡغِيۡكُمۡ اِلٰهًا وَّهُوَ فَضَّلَكُمۡ عَلَى الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۱۴۰﴾

وويل (موسی): آیا بې له الله ولټوم زه تاسې ته (بل) معبود؛ حال دا چې هم دغه الله فضیلت درکړی تاسې ته (غوره کړي يې يئ) پر ګردو (ټولو) خلقو (د زمانې خپلې).

وَاِذۡ اَنۡجَيۡنٰكُمۡ مِّنۡ اٰلِ فِرۡعَوۡنَ يَسُوۡمُوۡنَكُمۡ سُوۡٓءَ الۡعَذَابِ‌ ۚ يُقَتِّلُوۡنَ اَبۡنَآءَكُمۡ وَيَسۡتَحۡيُوۡنَ نِسَآءَكُمۡ‌ ؕ وَفِىۡ ذٰ لِكُمۡ بَلَاۤءٌ مِّنۡ رَّبِّكُمۡ عَظِيۡمٌ ﴿۱۴۱﴾

او (یاد کړئ) هغه وخت چې نجات درکړی وو مونږ (نیکونو د) تاسې ته له تابعانو د فرعون، چې رساوه به يې تاسې ته سخت عذاب، چې وژل به يې ځامن ستاسې (چې نسل مو قطع شي)، او ژوندی به يې پرېښودې ښځې (لوڼې) ستاسې (لپاره د خدمت)، او په دغه (عذاب يا نجات يا ګردو کې نعمت یا مصیبت يا) ازمېښت وو له (طرفه د) رب ستاسې څخه ډېر لوی.

تفسیر: د دې آیت تفسیر په (اول جزء د البقرة په (۴۹) آيت (۶) رکوع) کې پخوا ليکلی شوی دی، هلته دې وکتل شي، يعنې هغه پاک الله چې همدا اوس يې پر تاسې داسې عظيم الشأن احسان فرمايلی دی، نوآيا تاسې ولې د هغه له درباره باغي کېږئ؟ او ترې مخ آړوئ؟ او لرګيو او تيږو او نورو شيانو ته ولې تاسې خپل سرونه ښکته کوئ؟ .

وَوٰعَدۡنَا مُوۡسٰى ثَلٰثِيۡنَ لَيۡلَةً وَّاَتۡمَمۡنٰهَا بِعَشۡرٍ فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ اَرۡبَعِيۡنَ لَيۡلَةً‌ ۚ وَقَالَ مُوۡسٰى لِاَخِيۡهِ هٰرُوۡنَ اخۡلُفۡنِىۡ فِىۡ قَوۡمِىۡ وَاَصۡلِحۡ وَلَا تَتَّبِعۡ سَبِيۡلَ الۡمُفۡسِدِيۡنَ ﴿۱۴۲﴾

او (یاد کړه هغه وخت چې) وعده کړې وه مونږ (لپاره د ورکولو د تورات) له موسی سره دېرش شپې، او بيا پوره کړې مونږ هغه دېرش شپې په لسو (نورو)، نو پوره شوه وعده د رب د ده څلوېښت شپې (او ورځې)، او وويل موسی ورور خپل هارون ته: (طور ته د خپل تګ په وخت کې د تورات او مناجات لپاره) چې: خليفه اوسه ځما په دې قوم ځما کې (په غياب ځما) او اصلاح کوه (حال د دوی) او متابعت مه کوه د لارې د مفسدانو.

تفسیر: له شروع څخه تر دېرشو ورځو پورې ضروري او لازمي ميعاد به ګرځولی شوی وي، او د څلوېښتو ورځو پوره کول به له اختياري او استحبابي حيثيته د اصلي ميعاد د تکميل او تتميم په ډول (طريقه) ټاکلې (مقرر) شوی وي، لکه چې شعيب عليه السلام موسی عليه السلام ته د خپلې لور د ورکولو په وخت کې فرمايلي وو: ﴿قَالَ اِنِّىۡۤ اُرِيۡدُ اَنۡ اُنۡكِحَكَ اِحۡدَى ابۡنَتَىَّ هٰتَيۡنِ عَلٰٓى اَنۡ تَاۡجُرَنِىۡ ثَمٰنِىَ حِجَجٍ‌ ۚ فَاِنۡ اَتۡمَمۡتَ عَشۡرًا فَمِنۡ عِنۡدِكَ‌ ۚ وَمَاۤ اُرِيۡدُ اَنۡ اَشُقَّ عَلَيۡكَ‌ ؕ﴾ (۲۰ جزء د القصص سورت (۲۷) آيت (۳) رکوع).

او ځمونږ د زمانې ځينې مصنفين وايي چې: اصلي ميعاد همدغه څلوېښت شپې وې، لکه چې د البقرة په سورت کې مذکور دي، او دلته په ﴿فَتَمَّ مِيۡقَاتُ رَبِّهٖۤ﴾ کې ورته اشاره کړې شوې ده، دا د هغو څلوېښتو ورځو د بيان يو اسلوب دی، چې مونږ د دېرشو شپو وعده کړې وه، چې د هغه تتمه لس ورځې نورې هم وې، څو اشاره وشي چې يوه پوره مياشت د «ذي القعدة الحرام» لس شپې نورې هم ورزياتې کړې شوې دي، چې په دغه ډول د «ذي القعدة الحرام» په اوله کې اعتکاف شروع او په لسمه د «ذي الحجة الحرام» تمام شو، لکه چې له اکثرو أسلافو ځنې همدا منقول دي، والله أعلم.

وَلَمَّا جَآءَ مُوسٰى لِمِيقَاتِنَا وَكَلَّمَهٗ رَبُّهٗ ۙ قَالَ رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ ۗ قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ وَلٰكِنِ انْظُرْ اِلَى الْجَبَلِ فَاِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهٗ فَسَوْفَ تَرٰىنِيْ ۚ فَلَمَّا تَجَلّٰى رَبُّهٗ لِلْجَبَلِ جَعَلَهٗ دَكًّا وَّخَرَّ مُوسٰى صَعِقًا ۚ فَلَمَّآ اَفَاقَ قَالَ سُبْحٰنَكَ تُبْتُ اِلَيْكَ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۴۳﴾

او كله چې راغی (راورسېد) موسی موعُود وخت ځمونږ ته، او خبرې وكړې له دغه (موسی) سره رب د دغه (موسی)، نو وويل (موسی): ای ربه ځما ! وښيه ماته (ځان خپل) چې زه وګورم تاته، وفرمايل (الله): له سره به ونه وينې ته ما (په دنيا كې)، وليكن وګوره ته (دې) غره ته كه قرار پاتې شو هغه (غر) په ځای خپل كې؛ نو ژر به ته هم وويني ما، نو كله چې ورښكاره شو رب د دغه (موسی) غره ته (د كچې ګوتې په اندازه)؛ نو ويې ګرځاوه هغه (غر) ذرې ذرې (برابر له ځمكې سره خاوره)، او پرېووت موسی بېخوده (له ډېره هيبته نو كله چې په خود شو (موسی نو ويې) ويل: چې پاكې ده تاته (يا الله له ټولو عيبونو)، توبه مې وويسته تاته، او زه اول د مؤمنانو يم (په زمانه خپله په نه ليدلو ستا په دنيا كې).

**تفسير:** د ځلوېښتو ورځو له پوره كېدو څخه وروسته حق تعالی په كوم مخصوص او ممتاز رنګ سره موسی عليه السلام ته د مكالمې شرف وروباښه، په دې وخت كې موسی عليه السلام ته د كلام الله د بلا واسطې اورېدلو څخه ډېر زيات خوند او لذت حاصل شو، نو د اشتياق له كماله د متكلم د ليدلو آرزو او تمنّا يې وكړه، او ترې يې غوښتنه وكړه، چې ﴿رَبِّ اَرِنِيْٓ اَنْظُرْ اِلَيْكَ﴾ ای ربه ! ځما او د خپل تر منځ حجاب او موانع لرې كړه ! او خپله نوراني او ديدار وجه دې بې حجابه راوښيه، چې زه يې يو ځلې لږ ووينم !.

﴿قَالَ لَنْ تَرٰىنِيْ﴾ : وفرمايل الله: له سره به ته ونه وينې ما په دنيا كې، يعنې په دنيا كې به هيڅ مخلوق دغه فاني وجود او فاني قواوې د هغه ﴿ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ﴾ او «لم يزل او لا يزال» د ليدلو تحمل ونشي كولی، له دې نه ثابته شوه؛ چې په دنيا كې هر چا ته پخوا له مرګ څخه د الله تعالی د لقاء او ديدار شرف حاصلېدل شرعا ممتنع دي، اګر كه عقلا ممكن هم وي، ځمونږ د «أهل السنت و الجماعت» عقيده همدا ده، چې د باري تعالی رؤيت په دنيا كې عقلا ممكن او شرعاً ممتنع الوقوع دی، او په آخرت كې د هغه وقوع په قطعي نصوصو سره ثابت دی.

قَالَ يٰمُوسٰٓى اِنِّى اصْطَفَيْتُكَ عَلَى النَّاسِ بِرِسٰلٰتِيْ وَبِكَلَامِيْ ۖ فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

وفرمايل (الله چې مه خپه كېږه په نه ليدلو ځما او نعمتونه مې ياد كړه) ای موسی ! بېشكه ما غوره كړی يې ته پر ټولو خلقو (د زمانې ستا) په پيغامونو خپلو او تا سره په خبرو كولو خپلو سره (بې له واسطې)؛ نو ونيسه ! هغه څه چې دركړي مي دي تاته او اوسه له شكر ايستونكو.

**تفسير:** يعنې كه ليدل ونشول خير دی ! دغه شرف او امتياز خو لږ شی نه دی؛ چې ته مې خپل رسول وګرځولې، او تورات مې دركړ، او بلا واسطه مې درسره كلام وفرمايه، نو هغومره عطا او احسانات چې ځمونږ له لوري پر تا شوي دي؛ هغه نورو ته وسپاره ! او په هغو بندګانو كې شامل شه ! چې الله تعالی د شاكرينو په امتياز سره هغوی ممتاز فرمايلي دي.

وَكَتَبْنَا لَهُۥ فِي ٱلْأَلْوَاحِ مِن كُلِّ شَيْءٍ مَّوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا۟ بِأَحْسَنِهَا ۚ سَأُو۟رِيكُمْ دَارَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿١٤٥﴾

او ليكلي وو مونږ دغه (موسى) ته په تختو (د تورات) كې له هر (ديني) شي ځنې موعظه (پند) او تفصيل لپاره د هر شي (له احكامو) (بيا مو وفرمايل موسى ته): پس واخله دا (تختې د تورات) په كامل قوت (زور، عزم، كوښښ) سره او امر (حكم) وكړه قوم خپل ته چې ونيسي (عمل وكړي) په ډېر غوره (احكامو) د دې، ژر به وښيم زه تاسې ته ځاى د هستوګنې د فاسقانو.

تفسير: ځينې وايي چې تورات شريف پر دغو تختو باندې ليكلي شوي وو، د ځينو علماوو خيال داسې دى، چې دغه تختې پر تورات علاوه وې، چې د تورات له نزوله پخوا ورمرحمت شوې وې، په هر حال د الله جل جلاله ليدل ور په برخه نشوه، هغه خپګان، او تأثر چې موسى عليه السلام ته د الله جل جلاله سره د نه لقاء له كبله حاصل شوى وو؛ د هغه تلافي او جبران يې د الواحو په عطا سره وفرمايل، چې په كې هر ډول نصائح او د ګردو (ټولو) ضروري احكامو تفصيلات وو (ابن كثير).

تنبيه: د ﴿بِأَحْسَنِهَا﴾ له لفظ څخه يې يا خو پر دغې خبرې تنبيه فرمايلې ده، چې په هغو كې ماسوا له (أحسن) څخه بل هيڅ شى نه وو، يا خو هغه احكام چې په كې وركړى شوي دي، ګرد (ټول) يې في حدّ ذاته ښه دي، مګر ځينې يې له ځينو څخه أحسن دي، مثلا له ظالم ځنې انتقام او بدل اخيستل جائز او حسن دي، ليكن صبر كول او بخښل يې عزيمت او احسن دى، ګواكې بني اسرائيل يې د عزايمو او مندوباتو په اكتساب باندې مأمور كړل، چې په هغو كې ډېره سعي او كوښښ وكړي، او د پاك الله پوره امر منونكي شي، او كه نافرماني وكړي؛ نو دوى ته د نافرمانانو كورونه ورښوول كيږي، يعنې په آخرت كې دوزخ، او په دنيا كې تباهي او رسوايي (أعاذنا الله منهما).

ابن كثير او بغوي او ځينو نورو د نافرمانانو له كورونو ځنې مصر يا شام مراد كړى دى، چې د نافرمانانو فرعونيانو او عمالقه وو ملكونه وو؛ نو په دغه تقدير به دغه آيت د بني اسرائيلو لپاره بشارت وي، چې كه په پوره ډول سره فرمانبرداري وكړئ، نو د نافرمانانو ملك به تاسې ته دركول كيږي، والراجح الأول كما رجحه «ابن كثير».

سَأَصْرِفُ عَنْ ءَايَٰتِيَ ٱلَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَإِن يَرَوْا۟ كُلَّ ءَايَةٍ لَّا يُؤْمِنُوا۟ بِهَا وَإِن يَرَوْا۟ سَبِيلَ ٱلرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا وَإِن يَرَوْا۟ سَبِيلَ ٱلْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا وَكَانُوا۟ عَنْهَا غَٰفِلِينَ ﴿١٤٦﴾

ژر به واړوم (زه له قبلولو د افاقي او انفسي) آيتونو خپلو څخه هغه كسان چې تكبّر كوي په ځمكه كې په ناحقه سره، او كه ويني (دغه متكبران) هر قسم آيت (د قرآن يا د نبوّت معجزې نو) نه راوړي ايمان پر هغو (عنادا)، او كه ويني لاره د رشد (طريقه د هدايت خپل الله او جنت ته)؛ نو نه نيسي دوى هغه لاره (او نه ځي پر هغه طريقه) او كه ويني دوى لاره د ګمراهۍ نو نيسي دوى هغه لاره (او طريقه د تګ خپل او ځي پرې)، دغه (ګرځېدل له سمې صافې لارې) په سبب د دې دي؛ چې دوى نسبت د دروغو كړى وو آيتونو ځمونږ ته، او وو دوى له هغو (آيتونو) څخه غافلان (بې خبره چې فكر به يې په كې نه كولو).

تفسير: يعنې هغه خلق چې د الله تعالى او د رسول صلى الله عليه وسلم په مقابل كې ناحقه تكبر كوي، او دوى ته نخوت او غرور اجازه نه وركوي؛ چې د الله جل جلاله احكام ومني، مونږ به هم د دوى زړونه د خپلو آيتونو له لوري ورګرځوو، چې په آينده كې له هغوى ځنې د ګټې توفيق ونه مومي.

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَلِقَآءِ الْاٰخِرَةِ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ ؕ هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴۷﴾

او هغه کسان چې نسبت د دروغو يې کړی دی آيتونو ځمونږ ته او ملاقات د آخرت ته؛ خراب او باطل شول عملونه د دوی؛ نشي جزا ورکولی دوی ته مګر جزا د هغه عمل چې وو دوی چې عمل به (يې) کولو.

تفسير: يعني د الله تعالى په احکامو باندې به د تللو توفيق نه مومي، او هغه کارونه چې له خپله عقله يې کوي، هغه به د الله تعالى په دربار کې نه قبليږي، دوی څه چې کوي هم هغه به ګالي (برداشت کوي)، او څه چې کري هم هغه به ريبي، پاتې شوه د دوی بې اساسه نېکي؛ د هغو هر هغه بدل چې دوی ته رسېدونکی دی، هغه به په همدغې دنيا کې دوی ته وروړسيږي.

وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوْسٰى مِنْۢ بَعْدِهٖ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ ؕ اَلَمْ يَرَوْا اَنَّهٗ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيْهِمْ سَبِيْلًا ۘ اِتَّخَذُوْهُ وَكَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۸﴾

او ونيوه (جوړ کړ) قوم د موسى وروسته (د تللو) د ده (ميقات ته) له زېوراتو (ګاڼو) خپلو خُسی مجسم، چې ده لره غږ وو لکه د خُسي (جوړ يې کړ لپاره د عبادت)، آيا نه ليدل (نه پوهېدل) دوی چې بېشکه دغه (خُسی) خبرې نه کوي له دوی سره، او نه ښيي دوی ته هيڅ لاره، ونيو دوی هغه (خُسی په الوهيت سره)، او وو دوی ظالمان (پر خپلو ځانونو).

تفسير: دغه ګاڼې (زېورات) چې ويلي «ذوب» شوي وو، او د خسي مجسمه ترې جوړه شوې وه، په اصل کې د فرعون د قوم يعنې د قبطيانو وې، چې له هغوی څنې پاتې او د بني اسرائيلو په لاسونو کې لوېدلې وې، لکه چې د «طه» په سورت کې راغلي دي: ﴿حُمِّلْنَآ اَوْزَارًا مِّنْ زِيْنَةِ الْقَوْمِ﴾.

﴿جَسَدًا لَّهٗ خُوَارٌ﴾ الآيه - د «طه» په سورت کې به د دې خسي مفصله قصه راشي، دلته يې د دوی پر حماقت او سفاهت باندې تنبيه ورکړې ده، چې هغوی يو له خپله ځانه جوړې شوې مجسمې څنې، د خُسي په غږ آورېدلو باندې مفتون شوي دي، او هغه خسی خپل معبود ګڼي، حال دا چې په دغه بې معنى غږ کې نه کوم کلام وو، او نه څه خطاب، نه ديني او دنيوي هدايت او نه منفعت ترې حاصلېده، داسې يو تش صورت خو يو شی د انسانيت درجې ته هم نشي رسولی.

دا لا څه چې د هغه په وسيله انسانان د الله تعالى جل وعلا د معرفت تردرجې پورې خپل ځانونه ورسوي، نو دغه څومره لوی ظلم او بې موقع کار دی، چې د يوه معمولي ساکښ (ذي روح) مجسمې ته معبود وويل شي، خبره خو دا ده چې دغه قوم ته لا له پخوا د داسې بې موقعو خبرو کولو عادت پيدا شوی وو، لکه چې پخوا له دې نه د ﴿اجْعَلْ لَّنَآ اِلٰهًا كَمَا لَهُمْ اٰلِهَةٌ﴾ غوښتنه يې له موسى عليه السلام څخه کړې وه.

وَلَمَّا سُقِطَ فِيْٓ اَيْدِيْهِمْ وَرَاَوْا اَنَّهُمْ قَدْ ضَلُّوْا ۙ قَالُوْا لَئِنْ لَّمْ يَرْحَمْنَا رَبُّنَا وَيَغْفِرْ لَنَا لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾

او کله چې پښېمانه شول (په عبادت د خُسي باندې) او پوه شول چې بېشکه دوی په تحقيق ګمراه شوي دي؛ نو ويې ويل: قسم خامخا که رحم ونه کړي پر مونږ رب ځمونږ، او بخښنه ونه کړي مونږ ته (رب ځمونږ نو) خامخا به شو مونږ هرومرو له زيانکارانو.

تفسیر: ځینو د ﴿وَلَمَّا سُقِطَ فِيٓ أَيۡدِيهِمۡ﴾ ترجمه داسې هم کړېده: «او کله چې وغورځولې شو خپګان او پښیماني په لاسونو د دغو بني اسرائیلو کې، یعنې په دې کار خپل ډېر پښېمان شول».

وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰٓ إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ غَضۡبَٰنَ أَسِفٗا قَالَ بِئۡسَمَا خَلَفۡتُمُونِي مِنۢ بَعۡدِيٓۖ أَعَجِلۡتُمۡ أَمۡرَ رَبِّكُمۡۖ وَأَلۡقَى ٱلۡأَلۡوَاحَ وَأَخَذَ بِرَأۡسِ أَخِيهِ يَجُرُّهُۥٓ إِلَيۡهِۚ قَالَ ٱبۡنَ أُمَّ إِنَّ ٱلۡقَوۡمَ ٱسۡتَضۡعَفُونِي وَكَادُواْ يَقۡتُلُونَنِي فَلَا تُشۡمِتۡ بِيَ ٱلۡأَعۡدَآءَ وَلَا تَجۡعَلۡنِي مَعَ ٱلۡقَوۡمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ١٥٠

او کله چې بېرته راغی موسی (د طور له غره) قوم خپل ته په دې حال کې چې ډک وو له ډېر قهر او غصې افسوس کوونکی، وویل (موسی قوم خپل ته): بد خلافت چې خلافت کړی دی تاسې ځما (دا خلافت دی) وروسته له ما، آیا تلوار وکړ تاسې (په دې شرک سره او پرېښود تاسې حکم) امر د رب خپل، (نو تاسې داسې ولې وکړه) او وغورځولې (موسی هغه) تختې (د تورات له جهته د غضبه لپاره د حمایت د دین) او ویې نیوه سر د ورور خپل چې راښکود یې هغه ځان خپل ته، نو وویل (هارون موسی ته ای) ځویه د مور ځما! بېشکه چې (دغه) قوم ضعیف کړی ووم زه، او نژدې وو دوی چې وژلی یې وم زه، نو مه خوشالوه په ما باندې دښمنان، او مه ملګری کوه ما له قوم ظالمانو سره!.

تفسیر: کله چې موسی علیه السلام له «طور» څخه بېرته راغی؛ له غصې ډک وو، ځکه چې الله تعالی په همغه «طور» کې موسی علیه السلام ته خبر ورکړی وو، چې د «سامري» له لاسه ستا قوم ګمراه شو، د دې خبرې له اورېدلو څخه موسی علیه السلام سخت خپه او متأسف او په قهر شو.

﴿قَالَ بِئۡسَمَا خَلَفۡتُمُونِي مِنۢ بَعۡدِيٓ﴾ «وویل موسی: بد خلافت چې خلافت کړی دی تاسې ځما وروسته له ما دا خلافت دی»، یا وویل موسی قوم خپل ته: «بد کار دی دغه عبادت د خُسي چې کړی دی تاسې پس له تګه (تلو) ځما د طور غره ته».

دغه خطاب د خسي عبادت کوونکو ته وو، یعنې وروسته له ما څخه تاسې په ښه ډول ځما نیابت وکړ؟! «بلکه ومو نه کړ»، د هغې خبرې په نسبت چې ما پر تاسې زیات تأکید کړی وو، (یعني د الله تعالی توحید او تفرید)؛ تاسې د هغه په ځای دخسي مجسمه ودروله، او د هغه په نسبت مو داسې وویل: ﴿هَٰذَآ إِلَٰهُكُمۡ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ﴾، یعنې «في الحقیقت همدغه ستاسې او د موسی معبود دی»، او ممکن دی چې دغه خطاب هارون علیه السلام ته هم وي، چې تا ځما د هغه نیابت حق چې ﴿ٱخۡلُفۡنِي فِي قَوۡمِي﴾ مې درته ویلی وو، او هغه مې درسپارلی وو؛ په ښه شان سره ادا نه کړ، او د دوی مخه دې ونه نیوله، او په ټینګه سره دې د دغې فتنې مقابله ونه کړه، لکه چې د «طه» په سورت کې په تفصیل سره راځي.

﴿قَالَ ٱبۡنَ أُمَّ﴾ الآیه ـ نو «وویل هارون: ای ځویه د مور ځما! بېشکه چې دغه قوم ضعیف کړی وم زه، او نژدې وو چې دوی وژلی وم زه، نو مه خوشالوه په ما باندې دښمنان، او مه ملګری کوه ما له قوم ظالمانو سره».

اګر که هارون علیه السلام د موسی علیه السلام سکه ورور دی، مګر د مور د نسبت له یادولو څخه مقصد د نرمی، شفقت او مهربانی په لوري د موسی علیه السلام اړول دي.

دې آیت کې د هارون علیه السلام دمعذرت بیان دی، حاصل یې داسې دی: «ما سم له خپله مقدوره بني اسرائیل ډېر وپوهول، لیکن دوی ځما حقاني خبرو ته هیڅ غوږ کېنښود، او برسېره پر هغه ځما د وژلو لپاره هم تیار شول، اوس تاسې په دغې معاملې کې هغوی پر ما مه خوشالوئ، او دوی ته داسې موقع مه ورکوئ! چې پر ما وخاندي، او د قهر او عتاب په وخت کې ما د ظالمانو په ډله کې مه شاملوئ!».

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَلِأَخِي وَأَدْخِلْنَا فِي رَحْمَتِكَ ۖ وَأَنتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ ﴿١٥١﴾

وويل «موسى»: اى ربه ځما بخښنه وکړه ما ته (د دې عمل چې ومې کړ له خپل مشر ورور سره) او ورور ځما ته (هم بخښنه وکړه که يې تقصير کړی وي په منع کې)، او داخل کړه مونږ په رحمت خپل کې (چې دنيوي عصمت او اخروي جنت دی) او همدا ته ډېر مهربان يې له ټولو مهربانانو نه.

إِنَّ الَّذِينَ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ سَيَنَالُهُمْ غَضَبٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَذِلَّةٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُفْتَرِينَ ﴿١٥٢﴾

بېشكه هغه كسان چې نيولی دی دوی خُسی (په معبوديت) ژر به ورسيږي دوی ته غضب له ربه د دوی او ذلت (خواري) په دې ژوندون لږ خسيس كې، او همداسې (لكه سزا د عابدانو د خُسي) سزا وركوو مونږ بهتان تړونكو ته.

تفسير: دا همغه غضب دی چې ذكر يې په (اول جزء د «البقرة» په (۶۱) آيت (۶) ركوع كې تېر شوی دی)، يعنې د خُسي عابدان دې د هغو خلقو له لوريٌ ووژلی شي؛ چې هغوی د خُسي په عبادت كې نه دي شامل شوي، او د خسي د عبادت كوونكو پـه منع كـې يې برخه نه ده آخيستې.

له دې نه معلومه شوه؛ چې د مرتدّانو سزا وژل دي، او له ذلت څخه هغه خواري مراد ده، چې د نفي بلد او د جزيې په ډول پر دوی تطبيقيږي، او تر قيامته په مسكنت او سپكوالي محكوم دي.

وَالَّذِينَ عَمِلُوا السَّيِّئَاتِ ثُمَّ تَابُوا مِن بَعْدِهَا وَآمَنُوا إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٥٣﴾

او هغه كسان چې كوي دوی ناكاره كارونه (صغيره يا كبيره ګناه) بيا توبه وباسي پس له كولو د هغو (سيئاتو) او ايمان راوړي (په ټولو مؤمن به شيانو؛ نو توبه يې قبليږي ځكه) بېشكه چې رب ستا پس له دې (توبې) خامخا ښه بخښونكی (د خطياتو) رحم كوونكی دی.

تفسير: يعنې پاك الله د ناكارو كارونو كوونكي بخښي، تر دې كه وروسته له كفر او شركه په صدق سره كافر او مشرك توبه وباسي، او په رښتيا سره ايمان راوړي، نو د ﴿لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ په دربار كې يې توبه قبليږي، ځكه چې د الله تعالى په لوی دربار كې هر شی زيات دي، دغه بخښنه او نور په آخرت پورې متعلق دي، ګواكې اشاره يې وفرمايله چې د خُسي عبادت كوونكو ته چې هغه د وژلو سزا وركړی شوې ده؛ هغه د دوی په حق كې د دوی د توبې د قبلېدو شرط ګڼلی شوی وو: ﴿فَتُوبُوا إِلَىٰ بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ (اول جزء د البقرة سورت (۵۴) آيت (۶) ركوع).

اوس پر هغوی څه اخروي مؤاخذه نه ده پاتې، له دنيوي سزا څخه وروسته د اخروي حالت بيان په دغه ځای كې هم داسې دی: لكه چې په (۶ جزء د المائدې سورت په (۳۸) آيت (۶) ركوع) كې ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا﴾ الآيه - پسې وروسته يې ﴿فَمَن تَابَ مِن بَعْدِ ظُلْمِهِ وَأَصْلَحَ فَإِنَّ اللَّهَ يَتُوبُ عَلَيْهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ فرمايلي دي.

وَلَمَّا سَكَتَ عَن مُّوسَى الْغَضَبُ أَخَذَ الْأَلْوَاحَ ۖ وَفِي نُسْخَتِهَا هُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ هُمْ لِرَبِّهِمْ يَرْهَبُونَ ﴿١٥٤﴾
وَاخْتَارَ مُوسَىٰ قَوْمَهُ سَبْعِينَ رَجُلًا لِّمِيقَاتِنَا ۖ فَلَمَّا أَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ قَالَ رَبِّ لَوْ شِئْتَ أَهْلَكْتَهُم مِّن
قَبْلُ وَإِيَّايَ ۖ أَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ السُّفَهَاءُ مِنَّا ۖ إِنْ هِيَ إِلَّا فِتْنَتُكَ تُضِلُّ بِهَا مَن تَشَاءُ وَتَهْدِي مَن تَشَاءُ ۖ
أَنتَ وَلِيُّنَا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا ۖ وَأَنتَ خَيْرُ الْغَافِرِينَ ﴿١٥٥﴾

او كله چې قرار (سوړ) شو له موسى قهر نو وايې خيستې هغه تختې (د تورات)، او په ليك د دغو (تختو) كې هدايت او رحمت وو لپاره د هغو كسانو چې دوى له رب خپل څخه ويريږي. او غوره كړل موسى له قومه خپله اويا (تنه) سړي (چې د خسي له عابدانو څخه نه وو) لپاره د موعوده وخت څمونږ، نو كله چې ونيول هغوى زلزلې (په دنيا كې د الله د رؤيت د سوال په سبب)؛ نو وويل (موسى د اتهام له وېرې): اى ربه څما ! كه اراده فرمايلې وي تا (د هلاكولو د دوى) هلاك كړي به وو تا دوى پخوا له دې نه، او زه به دې هم (هلاك كړى وى)، آيا هلاكوې ته مونږ په هغه كار چې كړى دى بې عقلانو له مونږه؟، نه دى دا كار مگر ازمېښت دى ستا، گمراه كوې په دې سره (يا الله !) هر هغه څوك چې اراده يې وكړې ته (د ضلالت)، او هدايت كوې ته (يا الله !) هر هغه چا ته چې اراده وكړې ته (د هدايت يې)، همدا ته يې ولي (واكدار) څمونږ، نو بخښنه وكړه مونږ ته (د گناهونو څمونږ) او رحمت وكړه پر مونږ، او همدا ته يې بهتر غوره د ټولو بخښونكو.

تفسير: همدغه خبره راجحه معلوميږي چې دغه ميقات علاوه پر هغه ميقات دى؛ چې موسى عليه السلام ته د تورات د وركولو لپاره مقرر شوى وو، او هم د حاضرو آيتونو له ترتيبه ظاهرا مفهوميږي، چې دغه واقعه د خُسي د عبادت او سزا ميندلو څخه وروسته پېښه شوې ده، ليكن د سورت النساء د ﴿فَقَالُوٓا۟ أَرِنَا ٱللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ ٱلصَّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ ٱتَّخَذُوا۟ ٱلْعِجْلَ مِنۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ ٱلْبَيِّنَٰتُ﴾ په ډېر ښكاره صورت سره دا رانښيي چې د خُسي عبادت وروسته له دې پېښې شوى دى، والله أعلم بالصواب.

د دې واقعې خلاصه په (اول جزء د البقرة د سورت په (۵۵) آيت (۶) ركوع) كې پخوا تېره شوې ده، بني اسرائيلو موسى عليه السلام ته ويلي وو، چې مونږ ستا په خبرو هلته باور او يقين كولى شو؛ چې د الله تعالى خبرې مونږ په خپلو غوږونو واورو، موسى عليه السلام د دوى له منځه اويا تنه سړي چې گرد (ټول) مشران وو؛ انتخاب كړل، او د طور د غره په لوري لاړل، بالآخر دوى د الله تعالى خبرې په خپلو غوږونو سره واورېدلې، بيا يې وويل: كه مونږ پاك الله بې حجابه په خپلو سترگو ونه وينو؛ نو يقين مو ښه نه راځي، د دې بې ادبي او گستاخي په مقابل كې د ځمكې له لوري سخته زلزله وشوه، او د آسمان له لوري د برېښنا او تالندې سخت غږ راپورته شو، چې د هغې په اثر دوى گرد وربړدېدل، او ټول ځاى په ځاى مړه شول، موسى عليه السلام په ډېر عجز او نياز د ځان او د خپلو ملگرو عجز او نياز د بې نياز خالق په دربار كې په همغه خاص اسلوب او امتياز او مؤثر اصول سره وړاندې او يوه ښه دعا يې وكړه، چې د هغې په اثر هغه گرد (ټول) سړي وبخښل شول، او پاك الله هغوى ته نوى ژوند ورمرحمت كړ، كما قال الله جل وعلا: ﴿ثُمَّ بَعَثْنَٰكُم مِّنۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾.

وَٱكْتُبْ لَنَا فِى هَٰذِهِ ٱلدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِى ٱلْءَاخِرَةِ إِنَّا هُدْنَآ إِلَيْكَ ۚ قَالَ عَذَابِىٓ أُصِيبُ بِهِۦ مَنْ أَشَآءُ ۖ وَرَحْمَتِى وَسِعَتْ كُلَّ شَىْءٍ ۚ فَسَأَكْتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤْتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِنَا يُؤْمِنُونَ ﴿۱۵۶﴾

او وليكه (مقرر كړه) مونږ ته په ژوندون ددنيا كې نيكي (ښه معيشت او توفيق دطاعت) او په آخرت كې (هم نيكي جنت)، بېشكه مونږ راجع (او توبه گار) شوي يو تاته، نو وفرمايل (الله چې): عذاب څما وبه رسوم دا (عذاب) هر هغه چا ته چې اراده وكړم زه (د رسونې يې)، او رحمت څما شامل دى هر شي ته (په دنيا كې)، نو ژر به وليكم (ور به كړم په آخرت كې) دا (رحمت) هغو كسانو ته چې ځانونه ساتي له كفره او معاصي، او وركوي دوى زكات، او هغه كسان چې دوى په آيتونو څمونږ ايمان لري (او يقين پرې كوي).

**تفسير:** شاه صاحب ليكي: چې ښايي موسی عليه السلام د خپل امت په حق كې د دنيا او آخرت ښېګڼې (فائدې) چې غوښتلې يې؛ مراد به يې داسي وي چې: «زما امت دی په ګردو (ټولو) امتونو په دنيا او آخرت كې مقدم او فايق وي».

جواباً الله تعالی وفرمايل چې: «ځما عذاب او رحمت د هيڅ يوې فرقې لپاره مخصوص نه دي، نو عذاب مې په هغه چا دی چې زه يې اراده وفرمايم، او عام رحمت مې ګردو مخلوقاتو لره شامل دی، ليكن هغه خاص رحمت چې ته يې غواړې: (چې قبول د توبې يا توفيق د طاعت يا رزق حلال يا مقال دی په دنيا كې، او رضوان او مغفرت او لقاء او جنت دی په عقبا كې)؛ د هغو كسانو په برخه ليكلی شوی دی، چې له الله تعالی څخه ويريږي، او له خپلو اموالو ځني زكات اداء كوي، يا د نفس په تزكيه كې مشغول او لګيا وي، او د الله تعالی پر ګردو احكامو او خبرو د زړه له كومې باور لري، يعنې دا آخري امت پر ګردو كتابونو ايمان راوړي، د موسی عليه السلام له امت ځني هغه كسان چې په آخري كتاب باندې ايمان راوړي؛ نو دوی ته همغه نعمت ور په برخه كيږي، او د موسی عليه السلام د دعاء مورد ګرځي.

اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهٰىهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَالْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ ۗ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿١٥٧﴾

(دا متقيان مؤمنان چې مقرر دي دوی ته رحمت) هغه كسان دي چې متابعت كوي دوی د (دين د) هغه رسول چې نبي امي دی، هغه رسول چې مومي دوی (نوم او صفت د) ده ليكلی شوی په نزد د دوی په تورات او (په) انجيل كې، (هغه رسول چې حكم) امر كوي دوی ته په معروف (نېكۍ) سره، او منع كوي دوی له منكر (بدۍ) څخه او حلالوي دوی ته ګرد (ټول) طيبات (پاک شيونه چې حرام كړی شوي وو پر دوی باندې)، او حراموي پر دوی باندې خبيث (پليت) شيان، او لرې كوي له دوی څخه درانه بارونه د دوی، او قيدونه د سختيو هغه چې وو پر دوی، پس هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی په دغه (محمد) او عزت (تعظيم رفاقت) كوي د دغه (محمد) او مرسته (مدد) كوي له دغه (محمد سره) اومتابعت كوي د هغه نور (رڼا) چې نازله كړی شوې ده سره له (متابعته د) دغه (محمد)؛ نو دغه (ستايلي شوي كسان) هم دوی دي په مراد رسېدلي.

**تفسير:** «يعنې هغه خوک چې زه دغه رحمت ورته مقرروم، له هر قوم او ټبر او ملت اومذهب څخه چې وي، هغه خاص هغه كسان دي؛ چې پيروي كوي دوی د هغه چا چې موصوف وي په دغو لسو صفاتو سره چې محمد صلی الله عليه وسلم دی»:

(١): داچې هغه رسول او لېږلی ځما دی، رسول يې وباله په نسبت د ځان خپل.

(٢): داچې هغه نبي او پيغمبر دی، نبي يې وباله په نسبت د خلقو.

(٣): داچې هغه رسول امي يعنې نالوستونكی او ناليكونكی دی، او دا يې معجزه او عين الكمال دی، چې بې له لوستلو او ليكلو لوی عالم دی.

اُمي يا خو د «ام ـ مور» په لوري منسوب دی، همغسې چې وړوكی د مور له ګېډې ځني پيدا كيږي، او د هيچا شاګرد نه وي، نبي كريم صلی الله عليه وسلم هم په خپل ګرد (ټول) عمر كې له هيچا ځني هيڅ شی نه دي زده كړي،

او نه له چا سره شاګرد شوی دی، د «نبي أمي» لقب له دې حيثيته ځمونږ د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم لپاره د سلهاوو افتخارونو او وياړونو پنګه ده، يا د امّي نسبت د «أم القرى» مکې معظمې په لوري دی، چې د ده مبارک شريف مولد وو.

(۴): دا هغه رسول دی؛ چې مومي دا مؤمنان د بني اسرائيلو۔نوم او صفت د ده ليکلی شوی هم په تورات کې او هم په انجيل کې، يعني د محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم د رسالت بشارتونه، نعتونه او صفتونه په سابقه سماوي کتابونو کې مذکور دي، تر دې چې له هغه وخته تر نن ورځې پورې چې (۱۴۳۴) قمري کاله ځمونږ د پاک پيغمبر صلى الله عليه وسلم له هجرته تېر شوي دي، او خورا (ډېر) زيات تغييرات، تزييدات، او تنقيصات هم په هغو کتابونو کې شوي دي، خو بيا هم په اوسنيو انجيلو کې ډېر بشارتونه او اشارات موندل کيږي، چې هغه د هرې زمانې علماوو د کتابونو په حواله راښوولي دي، ولله الحمد على ذلک.

(۵): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې امر «حکم» کوي دوی ته په معروف او نېکۍ سره چې هغه توحيد او نور فضايل دي.

(۶): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې منع کوي دوی له منکر او بدۍ څخه چې هغه شرک او نور رذائل دي.

(۷): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې حلالوي دوی ته ګرد (ټول) طيبات او پاکيزه شيان چې حرام کړی شوي وو پر دوی باندې لکه: وازده چې حرامه وه پر يهودانو، او لکه بحيره او سائبه او وصيله چې حرام کړي وو پر خپل ځانو نورو جاهلانو.

(۸): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې حراموي پر دوی خبيث پليت شيان، لکه خنځير او مرداره او بهيدونکې وينه.

(۹): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې ږدي يعنې لرې کوي له دوی نه درانه بارونه د دوی، چې قتل وو د خپل ځان يا له وطن څخه جلاوالی (جدا والی) وو په قبول د توبې کې، او پرېکول د هر هغه اندام وو چې ګناه ترې صادر بده، او پرېکول د پليت ځای وو له جامې څخه، او داسې ډېر نور سخت کارونه.

(۱۰): هغه رسول صلى الله عليه وسلم چې لرې کوي قيدونه چې وو پر دوی، او هغه سخت طوقونه چې پراته وو په غاړو د دوی کې له وخته د موسى عليه السلام څخه تر اوسه پورې لکه لزوم د قصاص بې له صحته د عفوې او بې ديته په قتل د عمد او د سهوې دواړو کې، او سوځول د غنائمو او داسې نور سخت احکام.

يعنې پر يهودانو هغه سخت حکمونه چې نافذ وو، او د دوی د خوړو په شيانو کې د دوی د شرارتونو له وجې هغه مضيقه او تنګي چې وه، هغه ګرد (ټول) په دغه دين کې پورته يا آسانه شوي دي: ﴿فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَن سَبِيلِ اللَّهِ كَثِيرًا﴾ (۶ جزء د النساء سورت (۱۶۰) آيت (۲۲) رکوع).

او هغه ناپاک شيان لکه لحم الخنزير، يا ګنده خبرې مثلاً رشوت، سود، او سوايي او نور دوی په خپلو ځانونو حلال کړي وو، چې د هغو حرمت دغه رسول الله محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم راښکاره کړ، الغرض له دوی ځنې ډېر درانه بارونه لرې او سپک کړی شوي دي، او ډېر قيود ترې پورته کړی شوي دي، لکه چې په حديث کې فرمايلي شوي دي: «بعثت بالحنيفية السمحة».

﴿فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ﴾ «هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی په دغه محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم او عزت تعظيم رفاقت کوي د دغه محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم، اومرسته (مدد) کوي له ده سره، او متابعت کوي د هغه نور (رڼا) چې نازله کړی شوې ده سره له متابعته د ده؛ نو دغه ستايلي شوي کسان همدوی دي په مراد رسيدلي بريالي».

له «نور» ځنې «وحي» مراد ده، أعمّ له دې چې متلوّ وي (چې په لمانځه کې لوستله کيږي)، يا غير متلوّ (چې په لمانځه کې نه لوستله کيږي).

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا ٱلَّذِى لَهُۥ مُلْكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ ۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ يُحْىِۦ وَيُمِيتُ ۖ فَـَٔامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِ ٱلنَّبِىِّ ٱلْأُمِّىِّ ٱلَّذِى يُؤْمِنُ بِٱللَّهِ وَكَلِمَٰتِهِۦ وَٱتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥٨﴾

ووايه (اى محمده ! چې) اى خلقو بېشکه زه رسول د الله يم تاسې ټولو ته (نه بعضو ته لکه نور انبياء) هغه الله چې (خاص) ده لره دى ملک (پاچاهي) د آسمانونو او د ځمکې، نشته هيڅ لايق د عبادت (په حقه سره) مګر همدى دى چې ژوندي کول کوي، او مړه کول کوي، نو ايمان راوړئ (يقين وکړئ) پر الله (چې واحد او لا شريک دى)، او په رسول د دغه (الله) چې نبي امّي (نالوستونکى ناليکونکى دى)، هغه رسول چې ايمان لري په الله او په ګردو (ټولو) خبرو د الله، او متابعت وکړئ د ده لپاره د دې چې تاسې لاره ومومئ.

تفسير: يعني ستا بعثت د دنيا ګردو خلقو ته عام دى، د عربو په اميّونو يا يهودو او نصاراوو پورې نه دى محدود، همغسې چې پاک الله مطلق شهنشاه دى؛ ته هم د هغه مطلق رسول يې، اوس د هدايت او کاميابى صورت پر ته له دې نه په بل شي کې نشته؛ چې د هغه ډېر جامع او عالم نيوونکي شريعت متابعت او پيروي وکړى شي، چې تاسې ته هغه راوړى دى، همدغه رسول الله صلى الله عليه وسلم دى چې ايمان پرې راوړل په ګردو انبياوو او مرسلينو عليهم السلام او تمامو سماوي کتابونو باندې د ايمان راوړلو سره مرادف دى.

وَمِن قَوْمِ مُوسَىٰٓ أُمَّةٌ يَهْدُونَ بِٱلْحَقِّ وَبِهِۦ يَعْدِلُونَ ﴿١٥٩﴾

او ځينې له قومه د موسى نه يو امت (ټولى) دى چې لاره ښيي (خلقو ته) په حقه، او په دې حق انصاف کوي (په منځ د خلقو کې لکه چې دوى پخپله هم پرې عمل کوي).

تفسير: اګر که اکثره يهودان د سرکښى او بې انصافى لارې غوره کوي؛ خو سره له هغه ځينې داسې نېکمرغي ارواحې هم په دوى کې شته، چې نورو ته د الله جل جلاله په لورې او د حقانيت په طرف دعوت ورکوي، او دوى هم بالذات د حق او انصاف په لاره تګ کوي، لکه عبد الله بن سلام اونور.

وَقَطَّعْنَٰهُمُ ٱثْنَتَىْ عَشْرَةَ أَسْبَاطًا أُمَمًا ۚ

او بېل بېل کړ مونږ دغه (بني اسرائيل) دولس قبيلې ټولې ټولې؛

تفسير: يعني د اصلاح او انتظام لپاره په دولس قبيلو سره چې د دولسو پلرونو اولادې وې؛ وېشل شوي دي، بيا په هره قبيله کې يو يو مشر او نقيب مقرر کړى شوى دى، چې د دوى پر احوالو کتنه وکړي، او تل د دوى د اصلاح خيال وکړي: ﴿وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ ٱثْنَىْ عَشَرَ نَقِيبًا﴾.

وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ إِذِ ٱسْتَسْقَىٰهُ قَوْمُهُۥٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْحَجَرَ ۖ فَٱنۢبَجَسَتْ مِنْهُ ٱثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ۖ قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ۚ وَظَلَّلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْغَمَٰمَ وَأَنزَلْنَا عَلَيْهِمُ ٱلْمَنَّ وَٱلسَّلْوَىٰ ۖ كُلُوا۟ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقْنَٰكُمْ ۚ وَمَا ظَلَمُونَا وَلَٰكِن كَانُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١٦٠﴾ وَإِذْ قِيلَ

لَهُمُ اسْكُنُوا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ وَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ وَقُولُوا حِطَّةٌ وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطِيٓـٰٔتِكُمْ ۚ سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۶۱﴾

او وحي (حکم) مو ولېږه موسی ته کله چې اوبه وغوښتې ترې قوم د ده (په ميدان د تيه کې) چې ووهه په همسا خپله تیږه (ګټه)؛ نو (چې موسی په همسا ووهله تیږه ـ ګټه) راوخوټېدلې له هغې تیږې (ګټې) څخه دولس چینې (د قبیلو په شمار)، په تحقیق وپېژانده هرې قبیلې (له دوی څخه) ځای (چینه) د اوبو څښلو خپلو، او سیوری کړی وو مونږ پر دوی وریځ (په میدان د تیه کې) او نازل (رانښکته) کړي وو مونږ پر دوی من (ترنجبین) او سلوی (مرغان، نو وویل مونږ دوی ته چې) وخورئ تاسې له پاکیزه او حلالو لذیذو هغو شیانو چې درکړي دي مونږ تاسې ته، او نه وو کړی ظلم دوی پر مونږ (په دغه کفران او عصیان سره) ولیکن وو دوی چې په خپلو ځانونو به یې ظلم کاوه. او (یاد کړه) هغه وخت چې وویل شو دوی ته: اوسئ تاسې په دغې قریې (د اریحا یا ایلیا یا بیت المقدس) کې، او خورئ تاسې له (مېوو د) دې څخه له هر ځای (او له هر شي) څخه مو چې خوښه وي، او ووایئ راوبخښه (ګناهونه څمونږ) او ننوځئ تاسې دروازې (د دې قریې ـ ښار) ته سجده کوونکې، نو وبه بخښو مونږ تاسې ته ګناهونه ستاسې، ژر به زیات کړو محسنانو (نېکانو) ته (اجر).

تفسیر: یعنې اوس خو یو ښار فتح شو، وروسته به ګرد ملک په لاس درشي، «کذا في الموضح»، یا یې دغه مطلب دی چې خطاګانې به مو وبخښي، د نېکانو اجر او ثواب به ورته زیاتوي، «کذا في عامّة الکتب».

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْهُمْ قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۶۲﴾

پس بدله کړه هغو کسانو چې ظلم یې کړی وو (په خپلو ځانونو) له دوی څخه خبره غیر له هغې چې ویلې شوې وه دوی ته؛ نو ولېږه مونږ پر دوی عذاب له آسمانه په سبب د هغه چې وو دوی چې ظلمونه به یې کول.

وَسْـَٔلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ ۘ اِذْ يَعْدُوْنَ فِي السَّبْتِ اِذْ تَاْتِيْهِمْ حِيْتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا وَّيَوْمَ لَا يَسْبِتُوْنَ ۙ لَا تَاْتِيْهِمْ ۚ كَذٰلِكَ ۚ نَبْلُوْهُمْ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۱۶۳﴾

او پوښتنه وکړه (ای محمده! له یهودو) له (حاله د) قریې (ښار) څخه هغه چې وو په غاړه د بحر کې، کله چې له حده تېرېدل دوی له (فرمانه په ښکار د ماهیانو) په ورځې د خالي کې، کله چې راتله دوی ته ماهیان د دوی په ورځ د خالي د دوی کې ښکاره (د اوبو په سر)، او په هغه ورځ کې چې داخل به نه وو په خالي کې نو نه به راتله (ماهیان) دوی ته، همداسې (لکه چې په خالي کې راتلل یا په مثل د دغه امتحان) آزمویو مونږ دوی په سبب د دې چې وو دوی چې فسق به یې کولو (د الله له اطاعت څخه به وتل).

تفسیر: یعنې د خپلې زمانې له یهودانو څنې د تنبیه او توبیخ په ډول د هغه کلي د اوسېدونکو یهودانو د هغې قصې پوښتنه وکړئ! چې د داود علیه السلام په زمانه کې پېښه شوې وه، د اکثرو مفسرینو په نزد له دغې قریې څنې د (ایله)

ښار مراد دی، چې د قلزم د درياب پر غاړه کې د مدين او د طور په منځ کې واقع وه، د دغه ځای اوسيدونکو د سيند د نژديوالي له امله (وجې) د کبانو (ماهيانو) د ښکار عادت درلود (لرلو).

حق تعالی پر يهودانو د خالي (شنبې) د ورځې ښکار کول حرام ګرځولي وو، د (ايله) د ښار اوسېدونکي د احکامو په عدول او نافرمانۍ عادي (روږدي) وو، نو د الله تعالی له لوري د دوی سخته ازموينه شروع شوه، چې د خالي په ورځ کې داسې ډېر زيات کبان (ماهيان) موجود وو؛ چې د سيند د پاسه سطح باندې به ګرځېدل، او په نورو ورځو کې به غائب وو، د دغو خلقو له لاسونو څخه د صبر زمام خوشې شو، او د الله جل جلاله د صريح حکم په خلاف يې په حيله او بهانه کولو شروع وکړه، د سيند په غاړه کې يې ډنډونه جوړ کړل، کله چې د خالي په ورځ کبان په دغو جوړ شوو ډنډونو کې ننوتل؛ نو هغوی به د دوی د وتلو لارې بندولې، او په بله ورځ يعنې يکشنبې کې به يې نيول، چې د خالي د ورځې ښکار پرې صادق نشي، ګواکې دوی په دغه حرکت سره (معاذ الله) الله تعالی تېرايسته، بالآخر يې په همدغې دنيا کې د دغې مخالفت سزاوې وموندې، چې مسخ شول، او خورا (ډېر) سپک بيزوګان وګرځېدل، له دې نه ښکاره شوه چې پلمې (بهانې) جوړول حيله او مکاري د الله تعالی په دربار کې له سره نه چليږي.

وَإِذْ قَالَتْ أُمَّةٌ مِّنْهُمْ لِمَ تَعِظُونَ قَوْمًا ۙ اللَّهُ مُهْلِكُهُمْ أَوْ مُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ قَالُوا مَعْذِرَةً إِلَىٰ رَبِّكُمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿۱۶۴﴾

او (پوښتنه وکړه ای محمده ! له يهودانو) کله چې وويل يوې فرقې له دوی (چې نه به يې پخپله ښکار کاوه او نه به يې نور منع کول مانعينو ته) ولې نصيحت کوئ تاسې هغه قوم ته چې الله هلاک کوونکی د دوی دی (په دنيا کې) يا عذاب کوونکی د دوی دی په عذاب سخت (د اور سره په عقبا کې په سبب د نافرمانۍ د دوی)؟ وويل دوی (چې: وعظ کوو مونږ) لپاره د عذر پيدا کولو (خپل) رب ستاسې ته، او لپاره د دې چې ښايي دوی وويرېږي (له عذابه).

تفسير: معلوميږي کله چې دوی د الله تعالی د حکم په مخالفت په پلمو (منصوبو) جوړولو او حيلو شروع وکړه؛ نو د ښار اوسېدونکي پر څو قسمونو منقسم شول، لکه چې عموماً په داسې حالاتو کې هم داسې کيږي.

(۱): هغه خلق چې د دغې پلمې (منصوبې) په سيوري کې يې د الهي حکم صريح مخالفت کولو.

(۲): هغه نصيحت کوونکو چې تر آخره پورې په پوهولو او امر بالمعروف مشغول وو.

(۳): هغه کسان چې لږ او ډېر نصائح يې کول، خو څو ورځې وروسته مأيوس او د هغوی له سرکښۍ څخه ستړي شول، او په خپل سر يې پرېښودل.

(۴): هغه کسان وو چې نه په دغه عمل کې شريک شول، او نه يې د هغه په منع کولو کې خپله ژبه خوځوله، او بيخي ځان له جلا (جدا) او چپ پاتې شول، دغو مؤخرو الذکر ډلو به هغو ستړو ستومانه شوو تل نصيحت کوونکو ته داسې ويل: «ولې تاسې خپل سر خوږوئ؟ او ماغزه مو په دردوئ؟ چې په دوی کې د حق د قبلولو اميد او توقع نشته»، د دوی په نسبت له دوو خبرو څخه يوه خبره معلوميږي، چې هرو مرو (خامخا) راتلونکې ده، يا به الله تعالی دوی بيخي تباه او هلاک کړي، يا به يې په کوم ډېر سخت عذاب کې اخته کړي، ځکه چې دغه خلق اوس هيڅ يوه نصيحت ته غوږ نه ږدي.

﴿قَالُوا مَعْذِرَةً﴾ الآيه ـ «وويل دوی چې: وعظ کوو مونږ لپاره د خپل عذر پيدا کولو رب ستاسې ته، او لپاره د دې چې ښايي وويرېږي دوی له عذابه د الله تعالی، او ځان وساتي له ګناه څخه».

يعني ښايي له پوهولو سره لږ څه وويرېږي، او له خپلو بد حركاتو څخه ستانه (واپس) شي، كه نه مونږ به لږ تر لږه د الله تعالى په حضور كې دومره معذرت وكړى شو، چې يا الله ! مونږ خو تر آخره پورې دوى ته په پند وركولو او پوهولو كې څه قصور نه دى كړى (او د امر بالمعروف او نهي عن المنكر واجب مو اداء كړى دى)، څرنګه چې دوى څمونږ خبره نه ده منلې؛ نو پر مونږ يې څه الزام دى؟ ګواكې لومړني ناصحان خو بيخي مأيوس نه وو، كله چې مأيوس شول، هم پر عزيمت يې عمل وكړ، چې سره له مايوسى يې هم د دوى تعاقب پرې نښود.

﴿فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِۦٓ أَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ يَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلسُّوٓءِ وَأَخَذۡنَا ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ بِعَذَابِۭ بَـِٔيسِۭ بِمَا كَانُواْ يَفۡسُقُونَ ١٦٥﴾

نو كله چې پرېښود دوى (لكه چې يې هېر كړى وي) هغه (نصيحت) چې پند وركړى شوى وو دوى ته په هغه سره (او منع نشول د ښكار څخه په خالي كې، نو) نجات وركړ مونږ هغو كسانو ته چې منع كول دوى (دا نور) له بدئ (چې ښكار وو په خالي كې) او ومو نيول هغه كسان چې ظلم يې كړى وو (په كولو د ښكار او نه كولو د نهي او منع كولو) په عذاب سخت سره په سبب د هغه چې وو دوى چې ګناهونه به يې كول.

تفسير: يعني كله چې دغو نالائقانو د ګردو (ټولو) نصيحت كوونكو پندونه داسې هېر كړل، لكه چې له سره يې نه وو اورېدلي؛ نو مونږ ناصحان وژغورل (وساتل)، اوظالمان مو په سخت عذاب كې ګرفتار كړل.

د ﴿أَنجَيۡنَا ٱلَّذِينَ يَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلسُّوٓءِ﴾ د الفاظو عموم دلالت كوي چې هغو كسانو ته چې له نصيحت څخه ستړي شوي وو او ﴿لِمَ تَعِظُونَ قَوۡمًا﴾ الآيه - به يې ويل ، او هغو كسانو ته چې تر آخره پورې يې د وعظ او نصيحت سلسله جاري ساتله؛ هغو دواړو ته نجات ور په برخه شو، او يواځې ظالمان ونيول شول، همدغه له عكرمه رضي الله تعالى عنه څخه منقول دى، او ابن عباس رضي الله تعالى عنهما د ده په فهم او پوهه باندې تحسين او آفرين ويلى دى، باقي هغه كسان چې له اوله تر آخره پورې ساكت پاتې وو، الله تعالى هم د دوى له ذكره سكوت وفرمايه.

«ابن كثير» څه ښه ليكلي دي: «فنص على نجاة الناهين وهلاك الظالمين وسكت عن الساكتين، لأن الجزاء من جنس العمل، فهم لا يستحقون مدحا فيُمدحوا، ولا ارتكبوا عظيما فيُذموا (ابن كثير) ورجّح بعد ذلك قول عكرمة، والله أعلم»، «نو تصريح وفرمايله الله تعالى په نجات د نصيحت كوونكو له عذابه، او په هلاك او عذابېدلو د ظالمانو او سكوت يې وفرمايه له حاله د هغو كسانو چې دوى سكوت كړى وو له وعظ او منع كولو څخه، ځكه چې جزا د هرې ګناه موافق او مناسب د هغې ګناه سره وي، نو دوى نه مستحق د مدحې دي، او نه دوى پخپله په ګناه كې شامل شوي دي، چې د دوى مذمّت بيان شي»، اوس الله تعالى د دوى د عذاب خبر راكوي.

﴿فَلَمَّا عَتَوۡاْ عَن مَّا نُهُواْ عَنۡهُ قُلۡنَا لَهُمۡ كُونُواْ قِرَدَةً خَٰسِـِٔينَ ١٦٦﴾

نو كله چې سركشي وكړه دوى له (پرېښودلو د) هغه شي څخه چې منع كړى شوي وو دوى له هغه شي څخه (چې ښكار د ماهي وو په خالي ورځ كې؛ نو) وويل مونږ دوى ته چې: شئ بيزوګان شړلي رټلي سپك كړى شوي.

تفسير: ښايي پخوا له دې نه به څه نور عذاب راغلى وي، كله چې بيخي له حده تېر شول، نو ګرد ذليل شادوګان (بيزوګان) وګرځول شول، يا د ﴿فَلَمَّا عَتَوۡاْ﴾ الآيه - د تېر آيت ﴿فَلَمَّا نَسُواْ مَا ذُكِّرُواْ بِهِۦٓ﴾ الآيه - تفسير وګرځول شي، يعني هغه ﴿بِعَذَابِۭ بَـِٔيسِۭ﴾ همدغه له دوى څخه د بيزوګانو جوړول وو، شاه صاحب ليكي چې: «منع كوونكو له ښكار كوونكو

سره ناسته ولاړه او ملاقات پرېښود، او په منځ کې يې ديوال وواهه، يوه ورځ ګهيځ (سحر وختي) چې خپل سرونه يې له ديوال اوچت کړل؛ ويې ليدل چې په هر کور کې بيزوګانې دي، دغو بيزوګانو خپل او پردي ټول پېژندل، او د خپلوانو په پښو کې لوېدل، او خپل تأثر به يې ښکاره کولو، او ژړل به يې، آخر په ډېر بد صورت سره درې ورځې وروسته مړه شول».

وَإِذْ تَأَذَّنَ رَبُّكَ لَيَبْعَثَنَّ عَلَيْهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَن يَسُومُهُمْ سُوءَ الْعَذَابِ ۗ إِنَّ رَبَّكَ لَسَرِيعُ الْعِقَابِ ۖ وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۶۷﴾

او (ياد کړه) هغه وخت چې خبر ورکړى وو رب ستا (د دې خبرې): قسم دى خامخا مسلط به کړم هرومرو په دغو (يهودانو) تر ورځې د قيامت پورې هغه څوک چې رسوي دوى ته سخت عذاب (لکه وژل، جزيې پرې مقررول)، بېشکه رب ستا خامخا ژر دى عذاب (د ده هغه چا ته چې د عذاب اراده يې وفرمايي) او بېشکه دغه (الله) خامخا ښه بخښونکى (د خطياتو) ډېر رحم کوونکو دى.

تفسير: يعنې د الله تعالى له طرفه صريح اعلان شوى وو، چې که يهود د تورات پر احکامو خپل عمل پرېږدي، نو حق تعالى تر قرب قيامت پورې وقتاً فوقتاً پر دوى باندې داسې خلق مسلط کړي؛ چې دوى به په بدو عذابونو مبتلا کوي، بد عذاب يې د يهودانو د دې دنيا محکومانه ژوندون وفرمايه.

لکه چې د يهودانو قوم کله د يوناني او کله د کلداني بادشاهانو تر حکومت لاندې وو، او کله د بخت نصر او د نورو د شدائدو د مشق تخته ګرځېدلي وو، په آخر کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم تر مبارک عهد پورې دوى مجوسيانو ته باج ورکوونکي وو، بيا مسلمان حکمرانان پر دوى مسلط شول.

غرض له هغه وخته راهيسې تر نن ورځې پورې دوى ته من حيث القوم دعزت او آزادۍ ژوندون ور په برخه شوى نه دى، بلکه هر چېرې چې اوسېدل؛ د زياترو پاچاهانو او حکامو له لوري به يې سخت ذلتونه او خطرناک تکليفونه ګالل (تېرول)، د دوى مال او دولت او نور هيڅ شى دوى ته د سپکتيا او غلامۍ او محکوميت له ذلت او لعنت څخه نجات نه دى ورکړى، او نه به دوى تر قيامته پورې نجات ومونډلى شي، په آخر کې کله چې دغه خلق د دجّال مددګاران کيږي، او له هغه سره راوځي، نو د مسيح عليه السلام د مسلمانانو ملګرو له لاسه به وژل کيږي، کما ورد في الحديث.

وَقَطَّعْنَاهُمْ فِي الْأَرْضِ أُمَمًا ۖ مِّنْهُمُ الصَّالِحُونَ وَمِنْهُمْ دُونَ ذَٰلِكَ ۖ وَبَلَوْنَاهُم بِالْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿۱۶۸﴾

او متفرق کړل مونږ دوى په ځمکه کې فرقې فرقې (چې هيڅ ملک ترې خالي نه دى)، ځينې له دوى څخه نېکان دي، او ځينې له دوى څخه راښکته له دى (مرتبې د صلاح)، او وآزمويل مونږ دوى په نېکيو (نعمتونو لکه صحت، غنا) او په بديو (زحمتونو لکه مرض، فقر) ښايي چې دوى وګرځي (الله ته).

تفسير: د يهودانو دولت برهم شو، نو پخپلو منځونو کې د بې اتفاقۍ او مخالفت له کبله (وجې) هر طرف ته سره تيت او پرک (منتشر) شول، هيڅ يو اجتماعي قوت او شوکت يې پاتې نشو، او مختلف مذاهب پيدا شول، «دغه احوال څمونږ محمدي امت ته د عبرت لپاره اورول شوي دي»، خو سره له هغه هم ځينې افراد په دوى کې نېک هم وو، مګر اکثر

يې کافران او فاسقان وو، د دغو اکثرو لپاره هم مونږ د رجوع او انابت الی الله ډېر مواقع پيدا کړي دي، کله مو دوی ته د عيش او تنعم ژوندون ورکړی دی، او کله مو دوی په سختۍ او تکليف مبتلا کړي دي، چې ممکن دوی احسان ومني، يا له سختيو څخه ووېرېږي او توبه وباسي، او د الله تعالی په لوري رجوع وکړي.

فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٌ وَرِثُوا ٱلۡكِتَٰبَ يَأۡخُذُونَ عَرَضَ هَٰذَا ٱلۡأَدۡنَىٰ وَيَقُولُونَ سَيُغۡفَرُ لَنَا وَإِن يَأۡتِهِمۡ عَرَضٌ مِّثۡلُهُۥ يَأۡخُذُوهُۚ أَلَمۡ يُؤۡخَذۡ عَلَيۡهِم مِّيثَٰقُ ٱلۡكِتَٰبِ أَن لَّا يَقُولُوا عَلَى ٱللَّهِ إِلَّا ٱلۡحَقَّ وَدَرَسُوا مَا فِيهِۗ وَٱلدَّارُ ٱلۡأٓخِرَةُ خَيۡرٌ لِّلَّذِينَ يَتَّقُونَۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴿١٦٩﴾

نو پاتې شول وروسته له دوی نه (داسې) بد خليفګان چې وارثان شول د کتاب (تورات له پلرونو خپلو څخه حال دا چې) اخلي دوی مبلغ (او اسباب) د دې لږې خسيسې (دنيا په رشوت، د اخبارو او احکامو د تحريف په بدل) او وايي دوی: ژر به بخښنه وکړه شي مونږ ته، او حال دا که راشي دوی ته مبلغ (او اسباب نور) په مثل د دې نو اخلي دوی هغه(هم)، آيا نه وه اخيستې شوې له دوی څخه کلکه وعده په دې کتاب کې (بلکه آخيستې شوې وه داسې) چې نه به وايي دوی پر الله مګر حق (رښتيا خبره)، او لوستي (او لولولي) وو دوی هغه احکام چې په دغه (تورات) کې وو، او دار د آخرت (جنت) خير (ډېر غوره بهتر دی) لپاره د هغه کسانو چې وېرېږي (له عذابه او ځان ساتي له حرامو)، آيا نو تاسې عقل نه کوئ، نه پوهېږئ (چې دنيا فاني او عُقبا باقي ده).

تفسير: يعنې د دوی په ړومبنيو پلرونو او نيکونو کې څه صالحين هم وو، خو د دوی وروستنی اولاده او ځوځات داسې ناخلفه شو؛ چې د هغه کتاب تورات شريف وارثان او حاملان وګرځېدل، د دنيا د لږ څه سامان په اخيستلو سره يې د ده په آيتونو کې په تحريف او کتمان شروع وکړه، رشوتونه يې واخيستل، او د تورات د احکامو په خلاف به يې فيصلې صادرولې.

وَٱلَّذِينَ يُمَسِّكُونَ بِٱلۡكِتَٰبِ وَأَقَامُوا ٱلصَّلَوٰةَ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُصۡلِحِينَ ﴿١٧٠﴾

او هغه کسان (له دوی څخه) چې ښه ټينګ نيسي کتاب او قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ؛ بېشکه مونږ نه ضايع کوو ثواب (عوض، بدل) د نيکو کارانو (له دوی څخه).
تفسير: يعنې دتوبې او د حال د اصلاح ور اوس هم پرانيستلی دی، هغه کسان چې د شريرانو لاره پرېږدي، او د تورات د اصلي هداياتو لاره ټينګه نيسي، او د هغه د هدايت او پخوا ويلو سره سم اوس د قرآنکريم لمن ټينګه نيسي، او د الله تعالی د بندګی (لمانځه او نورو) حقوق په ښه ډول سره اداء کړي، الغرض چې د ځان او نورو اصلاح ته متوجه کيږي؛ نو الله تعالی د هغوی اجر نه ضايع کوي، او دوی بلا شبهه د هغو خپلو محنتونو د خوږو مېوو او ثمراتو څخه خامخا خوړونکي دي.

وَإِذۡ نَتَقۡنَا ٱلۡجَبَلَ فَوۡقَهُمۡ كَأَنَّهُۥ ظُلَّةٌ وَظَنُّوٓا أَنَّهُۥ وَاقِعُۢ بِهِمۡ خُذُوا مَآ ءَاتَيۡنَٰكُم بِقُوَّةٍ وَٱذۡكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمۡ تَتَّقُونَ ﴿١٧١﴾

او (ياد کړه ای محمده ! يهودو ته) هغه وخت چې راپورته کړ مونږ غر (د طور) د پاسه د دوی ګواکې دغه غر يو سايبان وو (لکه چترۍ د دوی په سر وه) او غالب ګمان وکړ (ووېرېدل) دوی چې بېشکه هغه غر راپرېوتونکی دی پر دوی (له هوا که تورات ونه مني، او ومو ويل دوی

ته چې) ونیسئ تاسې هغه (تورات) چې درکړی مو دی تاسې ته په قوت (زور ښه کوښښ) سره، او یاد کړئ هغه احکام چې په ده کې دي، ښایي تاسې ته چې ځانونه وساتئ تاسې ! (له ګناهونو).

**تفسیر:** یعنې هغه میثاق الکتاب ـ عهد او اقرار چې له دوی څخه اخیستی شوی وو، او اوس دوی ته ور په یادولی شي، هغه په داسې یوه اهتمام سره اخیستی شوی وو، چې غر د دوی په سرونو باندې ځوړند شوی وو، او دوی ته داسې ویلي شوي وو، هغه شی تورات او نور چې تاسې ته درکاوه شي؛ هغه ټینګ ونیسئ !، او په ښه عزم یې وساتئ ! او هغه نصائح چې تاسې ته شوي دي؛ هغه ټل پوره په یاد ولرئ ! او عمل پرې وکړئ، که نه د انکار په صورت کې وپوهېږئ چې الله تعالی دغه غر پر تاسې غورځوي، او هلاک کوي مو، افسوس دی چې هغه عهد او اقرار مو بیخي هېر کړی دی، چې په دومره اهتمام، تخویف، او تاکید له تاسې څخه اخیستی شوی وو، د «رفع الجبل» قصه په (اول جزء د البقرة په (۸) رکوع) کې تېره شوې ده، هلته یې وګورئ !.

وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنۢ بَنِىٓ ءَادَمَ مِن ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ ۖ قَالُوا۟ بَلَىٰ ۛ شَهِدْنَآ ۛ أَن تَقُولُوا۟ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَٰذَا غَٰفِلِينَ ﴿١٧٢﴾ أَوْ تَقُولُوٓا۟ إِنَّمَآ أَشْرَكَ ءَابَآؤُنَا مِن قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنۢ بَعْدِهِمْ ۖ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ ٱلْمُبْطِلُونَ ﴿١٧٣﴾

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې واخیست رب ستا له بني آدمو څخنې له شاګانو د دوی څخه اولادې د دوی، او شاهدان یې کړل دوی پر ځانونو خپلو باندې، (او وفرمایل الله دوی ته): آیا نه یم زه رب ستاسې؟ وویل دوی (او اقرار یې وکړ): هو ! (ته رب ځمونږ یې، په ربوبیت د الله)، ګواه کړه مونږ خپل نفسونه (د دې جهته) چې و (نه) وایئ تاسې په ورځ د قیامت کې چې بېشکه مونږ وو له دغه (توحیده) غافلان (ناخبران). یا (د دې جهته چې) و (نه) وایئ تاسې چې: بېشکه همدا خبره ده چې شرک غوره کړی وو پلرونو ځمونږ پخوا له (مونږه)، او وو مونږ اولاده پس له دوی نه (نو اقتدا کړې وه مونږ په هغو پسې)؛ نو آیا هلاکوې (په عذابوې ته یا الله !) مونږ په هغه کار باندې چې کړی وو باطله عمل کوونکو (مشرکانو).

**تفسیر:** شاه صاحب فرمایي چې: «الله تعالی د آدم علیه السلام له شا څخنې د ده اولاده او د اولادې له شاګانو څخنې یې د دوی اولاده وویسته، له ګردو (ټولو) څخنې یې د خپل الوهیت اقرار واخیست، بیا یې بېرته په همغو شاګانو کې ور داخل کړل، له دې نه دغه مدّعا ده، چې د الله تعالی په مطلق رب منلو کې هر انسان د خپل ځان لپاره کفایت کوي، د پلرونو تقلید نه دی پکار، که پلار مشرک شي؛ نو په ځوی باندې یې لازم دي چې ایمان راوړي، که چا ته داسې یوه شبهه پیدا شي چې هغه عهد خو ځما په یاد نه دی پاتې، نو بیا څه حاصل؟ نو داسې دې وپوهېږي، چې د هغه ننبه خو د هر انسان په زړه کې ده، او په ګردو ژبو باندې د هغه خبره جاري ده، چې د ګردو شیانو پیدا کوونکی الله جل جلاله دی، او پر دې باندې ټول جهان قائل دی، او هر چېرې مشهور دی، او هغه کسان چې منکران یا مشرکان شوي دي؛ نو دوی د خپل ناقص عقل په مداخله او ښوونې شرک غوره کړی دی، نو بیا دوی پخپله دروغجنان دي».

وَكَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْءَايَٰتِ وَلَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿١٧٤﴾

او همداسې (لکه قصّه د میثاق) په تفصیل سره بیانوو مونږ آیتونه او لپاره د دې چې دوی ښایي راوګرځي (له چټې ـ بېکاره تقلیده، او خپل فکر وچلوي).

تفسیر: په «موضح القرآن» کې راغلي دي، چې دغه قصه یې یهودانو ته واوروله، چې هغوی هم له خپل عهده همغسې ګرځېدلي وو؛ لکه چې مشرکان ګرځېدلي دي.

وَاتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَاَ الَّذِیۡۤ اٰتَيۡنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانۡسَلَخَ مِنۡهَا فَاَتۡبَعَهُ الشَّيۡطٰنُ فَكَانَ مِنَ الۡغٰوِيۡنَ ﴿۱۷۵﴾ وَلَوۡ شِئۡنَا لَرَفَعۡنٰهُ بِهَا وَلٰـكِنَّهٗۤ اَخۡلَدَ اِلَى الۡاَرۡضِ وَاتَّبَعَ هَوٰٮهُ‌ ۚ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ الۡـكَلۡبِ‌ ۚ اِنۡ تَحۡمِلۡ عَلَيۡهِ يَلۡهَثۡ اَوۡ تَتۡرُكۡهُ يَلۡهَث‌ ؕ ذٰ لِكَ مَثَلُ الۡقَوۡمِ الَّذِيۡنَ كَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا‌ ۚ فَاقۡصُصِ الۡقَصَصَ لَعَلَّهُمۡ يَتَفَكَّرُوۡنَ ﴿۱۷۶﴾

او ولوله (ای محمده !) پر دغو (یهودانو یا قوم خپل) خبر (او حال) د هغه (سړي) چې ورکړی وو مونږ هغه ته (علم) د آیتونو خپلو؛ نو راووت (او بېزار شو په کفر او اعراض سره) له هغو آیتونو، نو ورپسې شو شیطان (او تېر یې ایست) نو شو له ګمراهانو . او که اراده فرمایلې وی مونږ؛ نو خامخا پورته کړی به وو مونږ دی په دې آیتونو سره (مقام الأبرار ته)، ولیکن ده میلان وکړ ځمکې ته او متابعت یې وکړ د هوا خپلې، نو مثال د ده (په خساست کې) په شان د سپي دی، چې که حمله وکړې پرې (یا یې کوې، چغه کړې او وېې شړې) نو ژبه راباسي او غاپي، او که یې پرېږدې (او څه ورته ونه وایې هم) ژبه راباسي او غاپي، دغه (تېر مثل) مثال د قوم هغه دی؛ چې دوی (له ډېره کبره او عناده) نسبت د دروغو کوي آیتونو ځمونږ ته، نو بیان کړه (دوی ته) دغه قصې (او احوال) ښایي چې دوی فکر وکړي (په کې او ایمان راوړي).

تفسیر: د اکثرو مفسرینو په نزد دغه آیات د «بلعم بن باعوراء» په حق کې نازل شوی دی، چې یو یهودي عالم وو، وروسته ده د الله تعالی آیات او هدایات پرېښودل، او د یوې ښځې په اغواء او د دولت په طمع دموسی علیه السلام په مقابل کې د خپلو تصرّفاتو په چلولو او ناپاکو تدابیرو په کار آچولو لګیا شو، آخر یې موسی علیه السلام ته هیڅ زیان او نقصان ونه شو رسولی، او دی پخپله ابدي مردود شو.

د هغه الهي آیتونو علم چې «بلعم» ته ورکړی شوي وو، که الله تعالی اراده کړې وی؛ نو دی به د هغه په وسیله ډېرو لوړو مرتبو ته رسېدلی وو، او دغه هلته کېدی شو چې ده په خپل علم عمل کړی وی، او د الله تعالی د آیتونو د اتباع توفیق ور په برخه کېده؛ خو داسې ونشو، ځکه چې ده پخپله له آسماني برکاتو او آیتونو څنې مخ واړاوه، او د ځمکې د شهواتو او لذّاتو په لوري متوجه شو، دی د نفس په غوښتنو پسې رهي (روان) وو، او شیطان ده پسې لوېدلې تعاقب یې کاوه، تر دې چې د پخو کړو تلونکو او ګمراهانو په سلسله کې ورننووت.

په دغه وخت کې د ده حال د هغه سپي په شان شو؛ چې ژبه یې د باندې وتلي وي، او در ګرده غاپي او هونګیږي، که حمله پرې وکړې او کورې یې کړې؛ یا یې همغسې خوشې پرېږدې؛ په هر صورت سره هغه پرله پسې غاپي، هونګیږي او خپله ژبه یې ویستلې وي، ځکه چې په طبیعي ډول د زړه د کمزورۍ له وجې د تودې هوا په د باندې ایستلو او د سړې هوا په ننه ایستلو باندې په سهولت قادر نه دی.

همداسې په سفلي غوښتنو کې یې د سخت سا وهونکي سپي حال شو، چې د اخلاقي کمزورۍ له سببه په آیات الله پوهېدل او نه پوهېدل، تنبیه ورکول او نه کول دواړه حالتونه د ده په حق کې برابر شول: ﴿سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ءَاَنۡذَرۡتَهُمۡ اَمۡ لَمۡ تُنۡذِرۡهُمۡ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ﴾.

د دنیا له حرصه د هغه ژبه د باندې راوتلې او ځړېدلې وه، او د آیات الله د ترک له نحوسته د بد حواسی او د زړه د پرېشانی نقشه او حال د پرله پسې غپېدلو په مثال کې ظاهر شو.

ځيني وايي چې: دغه سړی أميه بن أبي الصلت وو، چې ده ته هم د ځينو پخوانيو کتابو علم ورکړی شوی وو، او په دې ښه خبر وو چې محمد صلى الله عليه وسلم آخر الزمان نبي دی، خو سره له هغه له ډېره کبره او حسده او عناده پرې کافر شو.

د آيتونو شان نزول هر څه چې وي په هر حال دلته د هواپرستانو انجام ښوولی شوی دی، چې د حق له قبلولو، يا له ښه پوهېدلو څخه وروسته، يوازې په دنيوي طمع او د سفلي غوښتنو په متابعت الهي احکام پرېږدي، او د شيطان پر اشاراتو درومي، او د الله تعالی دعهد او ميثاق هيڅ پروا نه کوي.

ګواکې يهودانو ته تنبيه وفرمايله شوه، چې يوازې علم الکتاب دومره نافع نه شي کېدی، تر څو پورې چې په صحيحه معنی سره د هغه اتباع ونه شي.

﴿مَثَلُ الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا﴾ (۲۸ جزء د الجمعه سورت (۵) آيت (۱) رکوع) بدو عالمانو لره په دغو آيتونو کې لوی عبرتناک پند او عبرت او سبق شته؛ که پرې غور او فکر وکړي.

سَآءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا وَاَنْفُسَهُمْ كَانُوا يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۷۷﴾

بد مثال دی (مثال د) قوم هغه چې نسبت د دروغو يې کړی وي آيتونو ځمونږ ته، او په ځانو خپلو وو دوی چې ظلم به يې کاوه (په کفر او معاصيو سره).

**تفسير:** د مشرکينو او نورو په ترديد کې په لوی قرآن کې ځای ځای د عنکبوت ذباب ـ غنې ـ مچ او نورو مثالونه بيان شوي دي مګر د دغو خلقو مثال په داسې بد ډول سره بيان شوی دی؛ چې هيڅ غيرتمن انسان حتی المقدور د هغه ممثل خپل ځان نشي ګرځولی، او هغه بې حيا او غدار چې خپل ځان د هغه مثال ګرځوي، نو هغه فقط د خپل ځان لپاره زيان رسوي.

مَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِيْ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۷۸﴾

هر چا ته چې هدايت وکړي (سمه صافه لار وښيي) الله نو همغه د هدايت (او سمې صافې لارې) موندونکی دی، او هر هغه څوک چې ګمراه کړي (ده لره الله)؛ نو دغه ګمراهان هم دوی دي زيانکاران.

**تفسير:** علم او فضل هم هلته انسان ته په کار ورځي؛ چې د الله تعالی په هدايت او مرسته (مدد) له صحيح علم سره موافق د عمل توفيق ور په برخه شي، هغه علم چې انسان موفّق نه کړي، چې د هغه په ښوونه په سمه لاره باندې لاړ شي، نو هر څومره چې دغه عالم علمي فضيلت او قابليت ولري؛ ودې پوهېږي چې پرته له زيان او خسارې څخه بل هيڅ شی به د ده په لاس ورنشي، نو ځکه انسان دې په خپل علم او فضل باندې مغرور نشي، بلکه تل دې له الله تعالی څخه هدايت او توفيق وغواړي.

وَلَقَدْ ذَرَاْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيْرًا مِّنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ ۖ لَهُمْ قُلُوْبٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ بِهَا ۖ وَلَهُمْ اَعْيُنٌ لَّا يُبْصِرُوْنَ بِهَا ۖ وَلَهُمْ اٰذَانٌ لَّا يَسْمَعُوْنَ بِهَا ۗ اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ ۗ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْغٰفِلُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

او خامخا په تحقيق پيدا کړي دي مونږ لپاره د جهنم (دوزخ) ډېر کسان له جن (پېريانو) او له انسانانو چې دي دوی لره (داسې بې معنی) زړونه چې هيڅ نه پوهېږي دوی په هغو سره (حق له باطله)، او دي دوی لره (داسې بې فائدې) سترګې چې نه ويني دوی په هغو

سره (نښې د قدرت)، او دي دوی لره (داسې بېکاره) غوږونه چې نه اوري په هغو سره (آیتونه د الله)، دغه کسان په شان د چارپایانو دي (د نفساني امور په اتّباع کې)، بلکه دوی (چې مکلّفان دي) ډېر ګمراهان دي (له چارپایانو څنې)، دغه کسان همدوی دي غافلان (کاملان په بې خبرۍ کې).

**تفسیر:** دغه آیت په ښکاره ډول د ﴿وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ﴾ له آیت سره معارض معلومېږي؛ نو ځکه ځیني مفسرین هلته د ﴿لِيَعْبُدُونِ﴾ لام د «غایت» لپاره او دلته په ﴿لِجَهَنَّمَ﴾ کې لام د «عاقبت» لپاره مرادوي، یعنې د ګردو (ټولو) له پیدا کولو څخه اصلي مطلب خو عبادت دی، لیکن څرنګه چې ډېر انسانان او پیریان به دغه مطلب پوره نه کړي شي؛ نو عاقبت به دوزخ ته لیږلي کیږي، نو د دغه عاقبت په لحاظ ویلی شو، چې ګواکې دوی دوزخ لپاره پیدا شوي دي، کما في قوله تعالی: ﴿فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا﴾.

خو د محققینو په نزد دغه تکلّف ته هیڅ حاجت نشته، او دوی په دواړو ځایونو کې لام د «غایت» لپاره بللی دی، مګر په ﴿لِيَعْبُدُونِ﴾ کې «تشریعي غایت» او دلته په ﴿لِجَهَنَّمَ﴾ کې «تکویني غایت» دی.

﴿لَهُمْ قُلُوبٌ﴾ الآیه ـ «چې دي دوی لره داسې بې معنی زړونه چې هیڅ نه پوهیږي په هغو سره حق له باطله الخ»، یعنې زړه، غوږونه، سترګې او نور ګرد شیان یې شته دي، خو نه په خپلو زړونو کې په آیات الله کې غور کوي، او نه د قدرت نښې د عمق او اعتبار په نظر مطالعه کوي، او نه الهي خبرې د قبول په غوږونو سره اوري.

څرنګه چې د چارپایانو (حیواناتو) ګرد ادراکات یواځې د خوړلو او څښلو او بهیمي جذباتو په دائره کې محدود وي، هم دغسې د دوی حال هم دی، چې خپل زړونه، دماغونه، لاسونه، پښې، سترګې او غوږونو الغرض د الله تعالی نورې ورکړی شوې قواوې یواځې د دنیوي لذائذو او مادي غوښتنو د تحصیل او تکمیل لپاره پکار اچوي، او له انساني کمالاتو او د ملکوتي خصائلو له اکتساب سره هیڅ سر او کار نه لري، بلکه که غور وکړ شي؛ نو د دوی حال له یوه لوري د حیواناتو له حاله هم بدتر دی، ځکه چې حیوان د خپل خاوند په بللو راځي، او د ده په رټلو او شړلو اوړي، مګر دوی له سره د خپل حقیقي مالک په غږ باندې غوږ نه ږدي.

وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا ۖ وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ ۚ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٨٠﴾

او خاص الله لره دي (ټول) نومونه ډېر ښه؛ نو وبولئ دغه (الله) په همغو (ښو نومونو) سره او پرېږدئ هغه کسان چې (له ډېره جهله) الحاد (کوږوالی) کوي په نومونو د الله کې، ژر به سزا ورکړه شي دوی ته د هغو کارونو چې وو دوی چې کول به یې.

**تفسیر:** پاک الله تل په ښو نومونو سره یادوئ! او په ښو صفاتو یې وستایئ! او هغه کسان چې د الله جل جلاله د اسماوو او صفاتو په نسبت کوږ تګ کوي؛ هغوی پرېږدئ! دوی څه چې کوي همغه به مومي.

د الله تعالی د نومونو او صفتونو په متعلق کوږ تګ دا دی، چې په الله تعالی باندې د داسې نامه او صفت اطلاق وکړی شي؛ چې د هغه اجازه شریعت نه وي ورکړي، او د حق جل وعلا د تعظیم او اجلال سره لایق نه وي، یا د ده د مخصوص نامه او صفت اطلاق په غیر الله باندې وشي، یا د هغو د معنی ګانو په بیانولو کې تأویل، لاندې باندې او وړاندې وروسته کول تر سره شي، یا یې په معاصي مثلاً سحر او په نورو کې استعمال کړي، یا له خپله ځانه پاک الله ته نومونه سازوي، لکه چې یهودان یې «أبو المکارم» «پلار د کرمونو» او «أبیض الوجه» «سپین مخی» بولي، او نصاری یې «أبو المسیح» ـ پلار د مسیح بولي، او حکماء یې «العلة الأولی» «ړومبنی علت» بولي، دغه ګرد کاره تلل دي، کله چې د دوزخیانو بحث تېر شو، نو اوس د جنتیانو حال بیانیږي.

وَمِمَّنْ خَلَقْنَآ أُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ﴿١٨١﴾

او ځینې له هغو کسانو چې پیدا کړي دي مونږ یو امت (جماعت) دی؛ چې لاره ښیي خلقو ته په حقه، او په همدې (حق) سره برابري (انصاف) کوي (په ګردو (ټولو) معاملاتو کې).

تفسیر: دغه جماعت محمدي مرحومه امت دی، علی صاحبها أفضل الصلوات والتسلیم، چې دوی له هر راز (قسم) افراط او تفریط او کږو تللو څخه بېل شوي دي، د صداقت، عدالت، دیانت، انصاف، او نورو محاسنو طریقه یې اختیار کړېده، او د همغو فضائلو په لوري نورو ته هم دعوت ورکوي، وروسته له دې نه د دې امت د مخالفینو او د حق تکذیب کوونکو ذکر راځي.

وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٢﴾ وَأُمْلِىْ لَهُمْ ۚ إِنَّ كَيْدِىْ مَتِيْنٌ ﴿١٨٣﴾

او هغه کسان چې نسبت د دروغو کوي آیتونو ځمونږ ته ژر به ونیسو مونږ دوی له داسې لوري چې نه به پوهېږي دوی، او مهلت ورکوم زه دوی ته، بېشکه چې کید (حیله، چال) ځما ډېر سخت دی.

تفسیر: دروغجنو مجرمانو ته ډېر ځلې علی الفور سزا نه ورکوله کیږي، بلکه د دنیوي عیش او عشرت او پراخۍ وَرونه ورپرانیستلی شي، تر دې چې د الهي سزا څنې بې فکره او د جرائمو په ارتکاب کې لا زړور شي، او ورو ورو خپل ځانونه په ښکاره ډول د هغې انتهایي سزا مستحق ګرځوي، چې په دوی باندې جاري کېدونکې ده، همدغه د پاک الله مهلت ورکول او استدراج دی، مګر دوی له حماقت او بې حیایی نه داسې ګومان کوي؛ چې دا پر مونږ باندې د الله تعالی لورینه او مهرباني ده.

أَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا ۜ مَا بِصَاحِبِهِمْ مِّنْ جِنَّةٍ ۭ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿١٨٤﴾ أَوَلَمْ يَنْظُرُوْا فِىْ مَلَكُوْتِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ شَىْءٍ ۙ وَّأَنْ عَسٰىٓ أَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ أَجَلُهُمْ ۖ فَبِأَىِّ حَدِيْثٍۭ بَعْدَهٗ يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٨٥﴾

آیا فکر نه دی کړی دغو (مکذبینو چې پوه شوي به وی په دې باندې) چې نشته په صاحب (ملګري) د دوی پورې هیڅ یو حال د لېونتوب، نه دی دغه (صاحب) مګر (خو دی) یو ویروونکی ښکاره. آیا نظر نه کاوه دوی (د استدلال په طریقې سره) په سلطنت د آسمانونو او د ځمکې کې، او په هغه کې چې پیدا کړي دي الله له هر شي څخه، او (بل په دې کې فکر نه کوي) چې ښایي چې وي (دا خبره) چې په تحقیق سره نژدې شوې به وي وعده د دوی، نو په کومې یوې خبرې پس له دې (قرآنه) ایمان به راوړي دوی.

تفسیر: یعنې آخر آیت الله ته د دروغو نسبت کول او د هغو له بد انجام څخه د غافلېدو سبب څه شی دی؟، د دغو آیتونو راوړونکی محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم عاقل، کامل، او امین فاضل دی، هغه ګرد عمر له تاسې سره اوسېدلی دی، د هغه د ټولو وړو او لویو احوالو څخه تاسې واقف یئ، د ده عقل، پوهه، امانت او دیانت لا له پخوا مسلّم او معروف دی، او له هغه ذات څخه چې دغه کتاب راوړی شوی دی؛ هغه د ګرد عالم مالک، مطلق شهنشاه، او د هر څیز خالق دی، د هغه پر نهایت مضبوط او محکم نظام، سلطنت، بلکه پر ټولو وړو او لویو شیانو چې د الله تعالی مخلوقات دي؛ غور او فکر وکړئ.

مثلا هم دغو ارتو او لويو آسمانونو ته د استدلال په طريقه دقت وکړئ، چې په کې (١٢) برجونه او رنګارنګ بېشماره ستوري دي، چې ځينې يې سيارات او ځينې يې ثوابت دي، لمر او سپوږمی لري.

او دقت وکړئ د ځمکې په ارت او لوی ملک کې، چې په کې ډول ډول (قسم قسم) ونې، سيندونه، بحرونه، غرونه، حيوانات، خوځندې، الوتونکي او راز راز (قسم قسم) بادونه، وربځې او بارانونه شته، او هر هغه شيان چې پيدا کړي دي الله تعالی؛ هغه هم دوی ويني، لـه هـر شي چې د صانع الله جل جلاله کامل قدرت ورته معلوم شو؛ نو د دغو «تکويني» او «تنزيلي» آيتونو تصديق به وکړي، بيا نو د آيات الله په تسليم کې څه عذر باقي دی؟ !، ښايي دوی وپوهول شي، چې د دوی د موت او هلاکت وخت به قريب شوی وي، لهذا په هغه تياری کې چې بعث بعد الموت لپاره وکړی شي؛ ښايي چې جلتي او تيزي وشي ! او ښايي چې له بدو کارونو توبه ګار او ښو کارونو ته حرص او تلوار وکړي !.

مَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَا هَادِيَ لَهٗ ۚ وَيَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿١٨٦﴾

هر هغه چا لره چې ګمراه کړي الله؛ نو نشته هيڅ لار ښوونکی د (حق) ده ته، او (الله) پرېږدي دوی په شرارتونو خپلو کې په دې حال کې چې حيران او سرګردانه ګرځي.

تفسير: هدايت او ضلالت دواړه لکه نور شيان د الله تعالی په قبضه کې دي، که الله جل جلاله اراده ونه فرمايي؛ نو ګرد د هدايت سامان همغسې پاتې کيږي، او سړی له هيڅ لوري نه منتفع کيږي، هو ! عادتاً هلته الله تعالی د هدايت توفيق ورکوي؛ چې بنده په خپل کسب او اختيار سره پر هغې لیارې تګ وکړي، او تلل پرې وغواړي، او هغه چې په لوی لاس يواځې بدی او شرارت ته ملا تړي؛ نو پاک الله هم وروسته له لار ښوولو څخه هغه په همغه خپل حال باندې پرېږدي.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرْسٰىهَا ۗ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّيْ ۚ لَا يُجَلِّيْهَا لِوَقْتِهَآ اِلَّا هُوَ ۘؔ ثَقُلَتْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ لَا تَاْتِيْكُمْ اِلَّا بَغْتَةً ۗ يَسْـَٔلُوْنَكَ كَاَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا ۗ قُلْ اِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٨٧﴾

پوښتنه کوي (منکران د قيامت) له تا نه (ای محمده !) له (حاله د) قيامت چې کله به وي وخت د قيام (ښکاره کولو د هغه)؟ ووايه ( ته دوی ته): بېشکه خبره همدا ده چې علم د ده په نزد د رب ځما دی، نه ښکاروي دا قيامت (هيڅوک) په وخت د ده کې مګر (ښکاره وي يې) هم دغه (الله)، درونډ دی (د قيامت ډار) په (مخلوقاتو) د آسمانونو او (په مخلوقاتو د) ځمکې، را به نشي دغه (قيامت) تاسې ته مګر (دربشي) ناڅاپه (بې خبره)، پوښتنه کوي دوی له تا نه (ای محمده !) ګواکې ته مبالغه کوونکی يې (په سوال کې) له قيامته (يعنې ته عالم يې په قيامت)؟ ووايه چې بېشکه علم د دغه (قيامت خاص) په نزد د الله دی، او ليکن زياتره خلق نه پوهيږي (په دې چې علم يې خاص الله لره دی).

تفسير: لومړی په ﴿وَّاَنْ عَسٰٓى اَنْ يَّكُوْنَ قَدِ اقْتَرَبَ اَجَلُهُمْ﴾ کې خاص د هغه قوم د اجل او موت ذکر وو؛ چې هغوی ته هيڅ معلوم نه وو، چې اجل کله راځي، نو بيا دلته دګردې دنيا د اجل قيامت په نسبت تنبيه فرمايي، کله چې چاته دخپل مرګ د وخت او نېټې اطلاع او خبر نه وي چې کله راځي؟ نو د دنيا د موت او اجل په نسبت څوک څه ويلی شي، چې په کوم تاريخ او په کومه نېټه به راځي؟ ! د دې تعيين علم پرته (علاوه) د علاّم الغُيوب الله جل جلاله بل هيڅ يو موجود سره نشته، همغه پاک الله په خپل معين او مقدر وخت کې قيامت واقع کوي، او دغه راښکاروي چې د الله تعالی په علم

کې د هغه وخت همدغه دی، پر آسمان او ځمکه باندې به دغه واقعه ډېره درنه وي، او د هغه علم هم ډېر درووند دی، چې ما سوا الله بل چا ته حاصل نه دی، اګر که د دغې واقعې ډېر قرائن او امارات شته، چې نبیانو علیهم السلام بالخاصه ځمونږ آخر الزمان پیغمبر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم بیان فرمایلي دي، خو بیا هم د دغو ګردو علائمو له ظهوره وروسته کله چې قیامت واقع کیږي؛ نو هغه به بیخي په بې خبرۍ یو ناڅاپه او دفعتاً پېښیږي، لکه چې د بخاري شریف او د نورو په احادیثو کې تفصیلا مذکور دي.

﴿يَسْـَٔلُونَكَ كَأَنَّكَ حَفِيٌّ عَنْهَا﴾ الآیه ـ د دې خلقو د سوال له طرزه ظاهرېږي، چې ګواکې دوی ستاسې په نسبت داسې خیال کوي؛ چې ته د دې خبرې په تحقیق، تفتیش، پته او سراغ لګولو کې مشغول یې، او له تلاشه وروسته دې د هغه علم ته ځان رسولی دی، حال دا چې دغه علم حق جل وعلی شأنه سره مخصوص دی، او انبیاء علیهم السلام په هغو شیانو پسې دومره نه ګرځي، چې هغه د الله تعالی له جانبه د کوم مصلحت لامله (وجې) پټ ساتل شوي وي، او نه دغه کار د دوی په اختیار کې شته، چې که هر څه وغواړي؛ هغه په کوښښ سره ضرور معلوم کړي.

﴿قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِى نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ ۚ وَلَوْ كُنتُ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ لَٱسْتَكْثَرْتُ مِنَ ٱلْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِىَ ٱلسُّوٓءُ ۚ إِنْ أَنَا۠ إِلَّا نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿١٨٨﴾﴾

ووایه (ای محمده دوی ته) چې زه نه لرم واک لپاره د نفس (ځان) خپل د (رسولو د) نفع او نه د (دفع کولو د) ضرر مګر هغه څه چې اراده وفرمایي الله، او که وی زه چې پوهېدلی په (خبرو د) غیب باندې؛ نو خامخا حاصل کړی به مې وی ډېر له خیر (نفعې) څخه، او نه به وو رسېدلی ما ته کوم زیان، نه یم زه مګر (خو یم) ویروونکی (د کفارو په جحیم سره) او زېری کوونکی لپاره د (هغه) قوم چې مؤمنان دي (په نعیم سره).

**تفسیر:** په دغه آیت کې دا راښوول شوي دي؛ چې هر بنده اګر که ډېر لوی هم وي، مستقل اختیار او محیط علم نه لري، سید الأنبیاء محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم ته د دې خبرې د اعلان کولو حکم شوی دی، چې زه نورو ته لا څه چې خپل ځان ته هم څه ګټه (فائده) نشم رسولی، او نه ځان له زیان څخه ساتلی شم، مګر څومره چې الله تعالی وغواړي؛ هم هغومره زه اقتدار لرم، که زه پر ګردو غیبي خبرو پوهېدی؛ نو ډېرې ښېګنې (فائدې) به مې د خپل ځان لپاره حاصلولې چې د غیبي علم د نه لرلو له سببه زیاتره فوتیږي، او هیڅکله هیڅ یوه نامناسبه واقعه به راته نه پېښېده، مثلا د «افک» په واقعه کې د څو ورځو له مخې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د وحیې د نه راتللو له سببه سخت اضطراب او قلق او پرېشاني ورپېښه شوه، په «حجة الوداع» کې یې صاف وفرمایل:

«لو استقبلت من أمري ما استدبرت لما سُقت الهدي» «که زه لا له پخوا پوهېدی په دغه شي باندې چې وروسته راپېښ شو؛ نو له سره به مې د (هدي) حیوان له ځان سره نه راووست»، داسې په سلهاوو نورې واقعې دي، چې د هغوی مخنیوی د «محیط علم» د لرلو په صورت په ډېره آسانی سره ممکن وو.

ګواکې دا یې ښوولې ده چې «علم المحیط» پرته له الله تعالی څخه بل هیچا ته نه دی حاصل، او علم الغیب خو لا پرېږدئ ! د محسوساتو او مبصراتو پوره علم هم د الله تعالی په عطا کولو سره حاصلیږي، که الله تعالی اراده ونه فرمایي نو مونږ د محسوساتو ادراک هم نشو کولی.

په هر حال په دغه آیت کې په ښکاره ډول سره راښوول شوي دي، چې مستقل اختیار یا محیط علم د نبوت له لوازمو څخه نه دی، لکه چې ځینې جاهلان یې اټکلوي، هو ! د شرعیاتو علم چې د انبیاوو علیهم السلام له منصب او وظیفې سره ربط لري؛ ښایي هغه کامل کړي.

﴿هُوَ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا لِيَسْكُنَ اِلَيْهَا ۚ فَلَمَّا تَغَشّٰىهَا حَمَلَتْ حَمْلًا خَفِيْفًا فَمَرَّتْ بِهٖ ۚ فَلَمَّآ اَثْقَلَتْ دَّعَوَا اللّٰهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ اٰتَيْتَنَا صَالِحًا لَّنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ۝١٨٩ فَلَمَّآ اٰتٰىهُمَا صَالِحًا جَعَلَا لَهٗ شُرَكَآءَ فِيْمَآ اٰتٰىهُمَا ۚ فَتَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝١٩٠﴾

همدغه (الله) هغه ذات دی، چې پیدا کړي یې یو ځل تاسې له نفس یوه څخه او پیدا کړې یې ده له دې نفس څخه ښځه د ده، لپاره د دې چې آرام ونیسي له دې سره، نو کله چې نارینه پټه کړه دغه ښځه (یعني جماع یې ورسره وکړه) نو حامله شوه په حمل خفیف (سپک سره)؛ نو ګرځېده (تله راتله) په له دې حمل سره، نو کله چې دروند شو حمل نو سوال وکړ دواړو له الله رب خپل نه، چې قسم دی خامخا که راکړې ته مونږ ته صالح (کامل روغ ولد)؛ نو خامخا شو به مونږ هرو مرو له شکر ایستونکو (په دې نعمت). نو کله چې ورکړ (الله) دوی ته صالح (ولد)؛ نو وګرځول دوی دواړو الله ته شریکان په (نامه د) هغه کې چې ورکړ دوی ته (الله)، نو پورته دی الله له هغه چې دوی (او اولاده د دوی) یې شریکوي (له ده سره).

تفسیر: الله تعالی ګرد انسانان له آدم علیه السلام څخه پیدا کړل، او د آدم علیه السلام د انس او سکون او د قرار د حصول لپاره یې د ده له وجوده د ده جوړه حواء رضي الله تعالی عنها پیدا کړه، بیا له دوی دواړو ځنې نوره اولاده او ځوځات پیدا شول.

کله چې یو نارینه له خپلې ښځې خپله فطري غوښتنه حاصله کړي؛ نو ښځه حامله شي، د حمل په ابتدایي حالت کې هیڅ دروندوالی نه وي، او حسب المعمول به ښځه تله راتله، او ناسته ولاړه کوي، ځکه چې تشه نطفه وي، کله چې ګېډه یې د ولد د لویېدلو په سبب راپورته شي؛ نو په دې باندې هیڅوک خبر نه وو، چې د دې په منځ کې څه شی پټ دي، آیا انسان دی که حیوان؟ نو نارینه او ښځې دواړو د حق تعالی په دربار کې عرض وکړ، که ته له خپله فضله یو ښه روغ رمټ او د کار وړ او صالح وړوکی مولود را عنایت کړې، نو مونږ دواړه بلکه ځمونږ نسل به هم ټول ستا شکر اداء کوو، کله چې الله تعالی د دوی دغه تمنّا پوره کړه، نو دوی ځمونږ په ورکړی شوي شي کې د نورو د برخو په ټاکلو (مقررولو) یې شروع وکړه، مثلا ځینې په دې عقیده شول، چې دغه اولاد فلاني ژوندي یا مړ مخلوق مونږ ته راکړی دی، ځینې په دې عقیده نه وو خو عملاً به یې د هغه په نذر او نیاز شروع وکړه، یا به یې د مولود وچولی (تندی) د هغه په مخکې په سجده کېښوده، یا به یې په مولود باندې داسې نوم کېښوده، چې له هغه څخه به د شرک بوی راته، لکه عبد العزّی، عبد الشمس او داسې نور، لنډه دا چې په دغه صورت کې به د حقیقي منعم حق اعتقادا یا فعلا یا قولا نورو ته ورکول کېده.

ښه وپوهېږئ چې حق تعالی د شرک د ګردو انواعو او مراتبو څخه لوړ او لوی او اعلی دی، په دغو آیتونو کې د حسن بصري «رحمه الله» او نورو له رایه سره موافق خاص آدم علیه السلام او حواء رضي الله تعالی عنها مقصود نه دي، بلکه د عامو انسانانو د حالت نقشه ایستلې شوې ده، بېشکه ابتداء په ﴿هُوَ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّجَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا﴾ کې د تمهید په ډول د آدم علیه السلام او حواء رضي الله تعالی عنها ذکر وو، مګر له هغه وروسته د مطلق نر او ښځې ذکر شوی دی، او داسې په ډېرو ځایونو کې کېږي، چې د شخص له ذکره د جنس په لوري انتقال مرادوي لکه په ﴿وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيٰطِيْنِ﴾ کې هغه ستوري چې په ﴿بِمَصَابِيْحَ﴾ سره یاد شوي دي، هغه لوېدونکي ماتېدونکي ستوري نه دي، چې په هغو د شیاطینو ویشتل په عمل راځي، مګر له شخص د ﴿بِمَصَابِيْحَ﴾ څخه جنس مصابیح ته د کلام انتقال شوی دی.

تنبیه: حافظ عماد الدين ابن کثير «رحمه الله» ويلي دي چې: «کومو روايتونو کې چې راغلي دي، چې آدم او حواء عليهما السلام خپل ځوی ته «عبد الحارث» نوم کېښود، هغه له درې جهته معلول دي:

(۱): عمر بن ابراهيم البصري د يوه حديث په سند کې راغلی دی، او ابو حاتم «رحمه الله» د هغه په اړه وايي: «لا يحتجُّ به».

(۲) په ځينو نورو روايتونو کې دا قول په سمرة رضي الله تعالی عنه باندې موقوف دی، او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې نه دی مرفوع کړی.

(۳): حسن بصري «رحمه الله» چې د دغه روايت راوي هم دی؛ خو پخپله يې د دغه آيت شريف تفسير دغه شان نه دی کړی، که دغه روايت صحيح وی، نو حسن رحمه الله به ورباندې په دغه تفسير کې اعتماد کړی وو، ځکه هغه وايي چې د ﴿جَعَلَا لَهُ شُرَكَآءَ﴾ نه مراد آدم او حواء عليهما السلام نه دي، بلکه د هغه اولادې ځينې نور خلك مراد دي، لکه يهود او نصاری، او همدا ښه او بهتر تفسير دی اهـ.

(۴): دا حديث حسن بصري «رحمه الله» د سمرة رضي الله تعالی عنه څخه روايت کړی دی، او د محققينو محدثينو تحقيق دا دی، چې حسن بصري له سمرة رضي الله تعالی عنه څخه يواځې د عقيقې حديث اورېدلی دی، او نور يې ورڅخه نه دي اورېدلي، نو هغه ټول منقطع دي.

او هر چې کوم آثار د أهل علم څخه په دغه باب کې نقل شوي دي؛ نو کېدای شي له أهل کتابو څخه يې اورېدلي وي، او په اسلامي شريعت کې داسې څه نشته چې د دغه روايتونو تأييد وکړي، نو که تکذيب يې ونه کړو، نو تصديق يې هم نشو کولای، سره له دې چې په وروستي غوراوي کې د يو جليل القدر پيغمبر په شان کې طعن هم راځي، نو له دې کبله لکه چې ابن کثير «رحمه الله» وايي: «ځمونږ په وړاندې افضل، راجح، او بهتر د حسن بصري «رحمه الله» قول دی، چې مراد ورڅخه آدم او حواء نه، بلکه د هغوی اولاد يهود او نصاری دي».

أَيُشْرِكُونَ مَا لَا يَخْلُقُ شَيْـًٔا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿١٩١﴾

آيا شريك ګرځوي دوی (له الله سره) هغه شی چې نشي پيدا کولی هيڅ څيز حال دا چې دغه (بُتان) پيدا کړل کيږي (يعني دوی پخپله بل چا پيدا کړي دي، نو څرنګه به خالق د بل چا شي؟).

وَلَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُمْ نَصْرًا وَلَآ أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٢﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ إِلَى ٱلْهُدَىٰ لَا يَتَّبِعُوكُمْ ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنتُمْ صَـٰمِتُونَ ﴿١٩٣﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ عِبَادٌ أَمْثَالُكُمْ ۖ فَٱدْعُوهُمْ فَلْيَسْتَجِيبُوا۟ لَكُمْ إِن كُنتُمْ صَـٰدِقِينَ ﴿١٩٤﴾ أَلَهُمْ أَرْجُلٌ يَمْشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَيْدٍ يَبْطِشُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ أَعْيُنٌ يُبْصِرُونَ بِهَآ ۖ أَمْ لَهُمْ ءَاذَانٌ يَسْمَعُونَ بِهَا ۗ قُلِ ٱدْعُوا۟ شُرَكَآءَكُمْ ثُمَّ كِيدُونِ فَلَا تُنظِرُونِ ﴿١٩٥﴾

او طاقت نه لري (دا بتان) لپاره د دغو (عابدانو خپلو) د مرستې کولو او نه له ځانونو خپلو سره مرسته (مدد) کولی شي. او که تاسې راوبولئ دوی سمې صافې لارې ته؛ نو نه کوي متابعت دوی ستاسې، برابره ده پر تاسې (دغه خبره) چې آيا بولئ تاسې (دوی) او که يئ تاسې چوپ (د دوی له بلنې څخه). بېشکه هغه کسان چې عبادت کوئ تاسې (ای مشرکانو ! د دوی او بولئ يې) بې له الله؛ مملوکان دي په شان ستاسې، نو وبولئ تاسې دوی؛ نو ودې مني دوی (دغه بلنه)

ستاسې که يئ تاسې صادقـان (رښتيني پـه دغه دعـوى کې چې دوى معبودان دي). آيا شته دوى ته (داسې) پښې چې تلل کوي دوى په هغو سره؟ آيا شته دوى ته (داسې) لاسونه چې نيول کوي دوى پـه هغو سـره؟ آيا شته دوى ته (داسې) سترګې چې ليدل کوي دوى په هغو سره؟ آيا شته دوى ته (داسې) غوږونه چې اورېدل کوي دوى په هغو سره (بلکه دا شيان دوى لره نشته، پس له تاسې څخه هم بدتر شول، نو تاسې څنګه د دوى عبادت کوئ؟ !) ووايه (اى محمده ! دوى ته): چې را وبولئ تاسې شريکان خپل (د امداد لپاره) بيا (په خپلو تدبيرونو) ضرر ورسوئ ماته پس مهلت مه راکوئ تاسې ماته (هيڅ قدر).

إِنَّ وَلِـۧيَ اللَّهُ الَّذِي نَزَّلَ الْكِتَٰبَ ۖ وَهُوَ يَتَوَلَّى الصَّٰلِحِينَ ﴿١٩٦﴾

بېشکه ولي «ناصر او ساتونکـى» مې الله دى، هغه چې ښکته کړى يې نازل کړى دى کتاب، او همدغه (الله حمايت) ساتنه کوي د صالحانو (او کارونه يې جوړوي).

تفسير: يعنې هغه الله جل جلاله څما ولي، بادار او مرستيال دى؛ چې پر ما باندې يې وار په وار کتاب (قرآن) نازل کړى دى، او د رسالت پر منصب باندې يې فائز کړى يم، هم دغه پاک الله به زما حمايت، حفاظت او صيانت د ګردې دنيا په مقابل کې وکړي، څکه چې همدغه الله تعالى د خپلو نېکو بندګانو حفاظت او اعانت کوي، بالخاصّه د انبياوو عليهم السلام.

وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِۦ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَكُمْ وَلَآ أَنفُسَهُمْ يَنصُرُونَ ﴿١٩٧﴾ وَإِن تَدْعُوهُمْ
إِلَى الْهُدَىٰ لَا يَسْمَعُوا ۖ وَتَرَىٰهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ وَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿١٩٨﴾

او (بېشکه) هغه (معبودان) چې يې بولئ تاسې بې له الله؛ طاقت نه لري دوى د نصرت (مرستې کولو) ستاسې، او نه د څانونو خپلو سره مرسته (مدد) کولى شي (نو زه يې څه پروا لرم). او که راوبولئ تاسې دوى په جانب د هدايت (د سمې صافې لارې)؛ نو هيڅ نه اوري دوى، او وينې به ته (اى محمده !) دوى چې ګوري به دوى تاته حال دا چې دوى به هيڅ نه ويني.

تفسير: يعنې په ښکاره سره دوى د سترګو خاوندان دي، خو په کې د ليدلو قوت او د کتلو قدرت او د بينايي نور او د بصارت ظهور چېرې دى؟

د ﴿تَدْعُوهُمْ﴾ فاعل که مشرکين شي، نو د (هُم) ضمير بُتانو ته راجع کيږي، يعنې که وبولئ تاسې اى مشرکانو دا بتان ښو کارو ته، نو دوى نه اوري، او که د ﴿تَدْعُوهُمْ﴾ فاعل مؤمنين شي؛ نو د (هُم) ضمير مشرکانو ته راجع کيږي، يعنې که وبولئ تاسې اى مؤمنانو دا مشرکان ښو کارونو ته؛ نو دوى ستاسې بلنه نه مني.

خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَٰهِلِينَ ﴿١٩٩﴾ وَإِمَّا يَنزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ
بِاللَّهِ ۚ إِنَّهُۥ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٠٠﴾

ونيسه (اى محمده ! عادت د) عفوې کولو، او امر (حکم) وکړه په معروف (نېکو کارونو) سره، او مخ وګرځوه ! (په څنګ شه !) له جاهلانو (ناپوهانو ليونيانو) څخه. او که باعث او تېز کړي تا (په معصيت) له طرفه د شيطان کومه وسوسه؛ نو پناه وغواړه په الله پورې، بېشکه دغه (الله) ښه اورېدونکى ښه عالم دى (د ټولو اقوالو په ګردو احوالو).

تفسير: د﴿خُذِالْعَفْوَ﴾ څو معناګاني شوي دي، د زياترو حاصل دا دی، چې له سختګيرۍ او تندخويي څخه پرهېز وکړه د مؤمنانو په مقابل کې، څو د قهر او غضب له امله (وجې) دوی در څخه تار په تار نشي، او محقق شيخ الهند «رحمه الله» همدغه معنا د «عفوې په عادت نيولو» سره تعبير کړېده.

ځينې د دې آيت ترجمه داسې هم کوي، «واخله ای محمده ! د غنيانو هغه زياتي مالونه او هغه چې آسان وي دوی ته، ( او دا حکم د زکات له وجوب څخه پخوا وو) او امر وکړه خلقو ته په نېکۍ سره، او مخ وګرځوه له ناپوهانو، او مه کوه ورسره جنګ، (او دا اعراض هم د جهاد له فرضيت څخه پخوا وو) او که ورسيږي تا ته ای محمده ! له طرفه د شيطانه څه وسوسه چې په جګړه کې دې واچوي له جاهلانو سره؛ پس پناه ونيسه په الله سره چې در څخه دفع کړي هغه وسوسه الخ».

إِنَّ الَّذِينَ اتَّقَوْا إِذَا مَسَّهُمْ طَائِفٌ مِّنَ الشَّيْطَانِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ ﴿٢٠١﴾ وَإِخْوَانُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِي الْغَيِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ ﴿٢٠٢﴾

بېشکه هغه کسان چې ويرېږي (له الله او ځان ساتي له ګناه) کله چې ورسيږي دوی ته کومه وسوسه (او ګذر) له طرفه د شيطانه؛ نو ياد کاندي دوی (حکم د الله او وينښ شي) پس ناڅاپه دوی ليدونکي وي (د حق)، او ورونه د دوی (چې شيطانان دي) راکاږي (چلوي) دغه (کفار) په ګمراهۍ کې، بيا نه کوي دوی تقصير (له ښويولو د کفارو يا کفار تقصير نه کوي په متابعت د شياطينو کې).

تفسير: اګر که د استعاذې حکم ګردو (ټولو) لره شامل دی، خو خطاب لومړی يواځې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته وو، اوس د عامو متقيانو او د ګردو (ټولو) پرهېزګارانو د حال بيان فرمايي، يعنې د عامو متقيانو په حق کې دغه محال نه دی، چې د شيطان ګذر د هغوی په لوري وشي، او خپله کومه وسوسه د هغوی په زړونو کې واچوي، هو ! د متقيانو شان داسې وي، چې د شيطان له اغواء او تېرايستلو څخه تل په غفلت کې نه پاتې کيږي، بلکه که لږ څه غفلت وريېښ شي؛ دستي پاک الله يادوي، ويښ او په سد کيږي، که يې ولغزي؛ نو سمدلاسه ځان نيسي.

باقي د غير متقيانو چې د دوی په زړو کې د الله تعالی وېره نه وي، او خپل ځان له ګناهونو څخه نه ساتي، او ښايي دوی ته د شيطان ورونه وويل شي، د دوی حال دا دی، چې شيطان تل دوی د ګمراهۍ په لوري کشوي، او ورښايسته کوي يې، او د دوی په تېرايستلو کې هيڅ قصور او کمی نه کوي.

وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِم بِآيَةٍ قَالُوا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا ۚ قُلْ إِنَّمَا أَتَّبِعُ مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ مِن رَّبِّي ۚ هَٰذَا بَصَائِرُ مِن رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠٣﴾

او تر هغه وخته پورې چې رانه وړې (ته ای محمده !) دوی ته کومه معجزه (چې دوی يې غواړي نو) وايي دوی: ولې دې (له خپله ځانه) غوره (جوړه) نه کړه داسې معجزه؟ نو ووايه: بېشکه همدا خبره ده، چې زه متابعت کوم د هغه څه چې وحي کولی شي ماته له طرفه د رب خما (او زه نه يم راوړونکی د معجزې له خپله ځانه)، دغه (قرآن ټول دلائل د) پوهنې دي له (جانبه ده) رب ستاسې، او هدايت او رحمت دی لپاره د (هغه) قوم چې مؤمنان دي دوی.

تفسير: د نبي وظيفه يواځې همدغه ده، چې هر هغه شی چې الله تعالی په وحي سره نازلوي؛ قبول يې کړي، او پرې ټګ او عمل وکړي، او نورو ته هم پر هغه باندې د عمل کولو دعوت ورکړي، باقي هغه تنزيلي او تکويني آيتونه چې تاسو

يې له ما څنې غواړئ؛ نو كوم آيت او معجزه به له پاك قرآن څخه لويه او لوړه وي؟ ځكه چې دغه عظيم الشأنه معجزه د ګرد (ټول) جهان لپاره د بصيرت زياتوونكو حقائقو او مواعظو خزانه ده، او ايمان راوړونكو ته د يوه خاص قسم هدايت او رحمت ذخيره منځ كې لري، تاسې دغه عظيم الشأن قرآن كله ومانه ! چې بيا به هغه فرمايشي معجزه ومنئ؟ !.

وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٢٠٤﴾

او كله چې ولوستلى شي قرآن؛ نو غوږ كېږدئ تاسې هغه ته او چپ اوسئ تاسې، لپاره د دې چې رحم درباندې وشي.

وَاذْكُرْ رَبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا وَخِيفَةً وَدُونَ الْجَهْرِ مِنَ الْقَوْلِ بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ وَلَا تَكُنْ مِنَ الْغَافِلِينَ ﴿٢٠٥﴾

او يادوه ته (اى بنده !) رب خپل په زړه خپل كې په زارۍ او وېرې سره او كم له هسكه (اوچته) غږه له وينا، په لومړنيو برخو د سبا كې، او په وروستنيو برخو د بېګا كې، او مه كېږه (اى څما بنده) له غافلانو (بې خبرانو !).

تفسير: لوى ذكر خو عظيم الشأن قرآن دى، چې د هغه د ادب بيان اوس تېر شو، په دغه آيت كې د «ذكر الله» څه آداب په عمومي توګه بيان فرمايي، يعني د «ذكر الله» اصلي روح همدا دى، هغه شى چې په ژبه ويل كيږي؛ د زړه توجه دې هم د هغه په لوري وي، تر څو د «ذكر الله» پوره خوند او نفع ظاهره شي، او ژبه او زړه دواړه د الله تعالى په ياد كې مشغول شي، د ذكر الله په وخت كې ښايي چې په فكر كې دقّت او په زړه كې رقّت وي، او په صحيح رغبت، مينه او رهبت (وېره) سره د الله تعالى په ياد كې مشغول او لګيا شي !، او داسې وضعيت او هيئت دې خپل ځان ته غوره كړي، لكه چې كوم ويرېدونكى خوشامند كوونكى انسان يو لوى بې مثله ذات ته عرض او فرياد كوي، ښايي چې د ذاكر په لهجه، غږ او هيئت كې دې د تضرّع، وېرې او خوف اثر او رنګ محسوس وي، د ذكر او مذكور له عظمت او جلاله د غږ ورو كېدل يو طبيعي او قدرتي امر دى: ﴿وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا﴾ (١۶ جزء د طه سورت (١٠٨) آيت (۶) ركوع)، نو ځكه له په زوره ذكر كولو څخه ممانعت راغلى دى، كه په ورو غږ او توجّه سره په خفيه يا په جهر سره د الله تعالى ذكر وكړي؛ نو الله تعالى به هم د هغه ذكر كوي.

إِنَّ الَّذِينَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ ﴿٢٠٦﴾

بېشكه هغه (ملائكې) چې په نزد د رب ستا كې (مقربې) دي؛ نه كوي تكبر (لويي) دوى له عبادت د دغه (الله) څخه، او پاكي وايي په هر وخت د دغه (الله) او خاص هم دغه الله ته سجدې كوي.

تفسير: يعني په شپه او ورځ مخصوصاً د سبا او بېګا په اوقاتو كې د الله تعالى له ياده مه غافل كېږئ، كله چې مقربې ملائكې د الله تعالى له بندګۍ څخه عار نه كوي، بلكه همېشه د الله جل جلاله په يادولو او ذكر كولو كې لګيا او مشغولې دي، او هم دغه رب العالمين ته سجدې كوي؛ نو انسانانو ته لا ضروري ده، چې د اله العالمين جل جلاله له ذكر او عبادت څخه غافل نشي !، بنا پر دې د دې آيتونو له لوستلو څخه وروسته ښايي چې د تلاوت سجده هم وكړه شي !.

(تمّت سورة الأعراف بفضل الله تعالى)

# سُورَةُ الأَنفَالِ

«د (الأنفال) سورت مدني دی، پرته له (۳۰) آیت څخه د (۳۶) آیت تر آخره پورې چې مکي دي، (۷۵) آیتونه او (۱۰) رکوع لري، په تلاوت کې (۸) او په نزول کې (۸۸) سورت دی، د (البقرة) له سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

دغه سورت د «بدر» له غزا څخه وروسته په مدینې منورې کې نازل شوی دی، د هجرت په دویم کال کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته معلومه شوه، چې یوه لویه تجارتي قافله د ابو سفیان په مشرۍ له شام څخه رهي (روانه) شوې ده، د ابو سفیان دغه تجارتي قافله «جوپه» چې په هغې کې تقریباً «۶۰» تنه قریش او یو زر اوښان او پنځوس زره دیناره مال وو، کله چې له شام څخه د مکې معظّمې په لورې د کاروان د بېرته راګرځېدلو خبر نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته ورسېد.

نو د «صحیح مسلم» له یوه روایت سره سم رسول الله مبارک له اصحابو سره مشوره وکړه، چې آیا پر دغه جماعت باندې تعرض وکړو؟ د دغې جرګې د دې وضعیت له لیدلو څخه ابو بکر الصدّیق او عمر الفاروق او رئیس الانصار سعد بن عبادة رضي الله تعالی عنهم أجمعین حوصله زیاتوونکې خطبې وویلې او ښې ویناوې یې وکړې.

بالآخر رسول اکرم صلی الله علیه وآله وصحبه وسلّم له درې سوو او څو تنو مجاهدینو سره؛ هغه کسان چې په هماغه و خت کې سره ټول شوي وو، له خپلو معمولي سامانونو سره رهي (روان) شوي وو.

په دې باره کې د بخاري شریف په روایت کې «کعب بن مالک رضي الله تعالی عنه» فرمایي: «هغه کسان چې د بدر په غزا کې شریک شوي نه وو؛ په هغوی باندې کوم عتاب نازل نشو، څکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یواځې د تجارتي قافلې د مهم لپاره وتلی وو، اتفاقاً الله تعالی د یوه اساسي جنګ صورت ورپیدا کړ.

ابو سُفیان د رسول الله مبارک له دغې ارادې څخه خبر شو، او سمدلاسه یې مکّې معظمې ته سړی واستاوه، له هغه ځایه تقریبا د زرو تنو لښکر چې د قریشو لوی لوی سرداران او مشران هم په کې شامل وو؛ له پوره وسلو، سامانونو، لوازمو او تجهیزاتو سره د مدینې منورې په لورې رهي (روان) شو.

رسول الله مبارک د «صفراء» په مقام کې وو، چې دا خبره ورمعلومه شوه، چې د ابو جهل او د نورو لویو لویو «ائمة الکفر» تر مشرۍ لاندې لوی لښکر په ډېر زور او شور او غیظ او غضب د اسلام د مقابلې لپاره را رهي (روان) شوی دی، د دې غیر متوقع صورت له پېښېدلو څخه وروسته رسول الله مبارک بیا خپلو اصحابو کرامو ته د دې خبرې اطلاع هم وکړه، چې په دغه وخت کې دوه جماعته ستاسې په مخکې دي:

(۱) تجارتي قافله.

(۲) فوځي لښکر، د الله تعالی اراده داسې ده، چې له دغو دوو ټولیو څخه پر یوه باندې به تاسې مسلط وګرځئ، تاسې دا راوښیئ، چې له دغو دواړو ډلو څخه پر کومې باندې تعرّض او یرغل (حمله) کول غواړئ؟ او د هغه د مقابلې لپاره تیار یئ؟ څرنګه چې دغه اسلامي لښکر خپل پوره تیاری جهاد ته نه وو کړی؛ ځینو افرادو چې خپل لږ سامان، وسلو، او اسبابو او د تعداد قلّت (کمی) ته وکتل نو داسې رایه یې ورکړه چې: پر تجارتي قافلې باندې یرغل (حمله) زیات مفید او آسان دی، مګر دغه رایه د رسول الله نه وه خوښه، ابو بکر صدیق، عمر فاروق، او مقداد بن الأسود رضي الله تعالی عنهم أجمعین په ډېر څوښ (جوش) سره غیرت راوړونکې ویناوې وکړې، په آخر کې سعد بن معاذ رضي الله تعالی عنه تقریر وکړ.

وروسته داسې فیصله وشوه، چې د عسکریت په ډګر کې ښایي چې مونږ د اسلامي شجاعت جوهر وښیو، څنګه چې د بدر په مقام کې دغه دواړه د حق او باطل فوځونه سره مخامخ شول، الله تعالی مسلمانانو ته لوی برې عنایت او ور په برخه کړ، د کافرانو (۷۰) تنه لوی لوی سرداران ووژل شول، او (۷۰) تنه یې بندیان شول، په داسې ډول د کفّارو زور مات شو.

په دغه سورت کې عموما د همدغې غزا جزئيات او متعلقات بيان شوي دي، هغه کسان چې داسې خيال کوي، چې په دغه غزا کې رسول الله مبارک له ابتداء څخه د هغه لښکري قوت د مقابلې لپاره وتلی وو، چې د تعرض په مقصد د مدينې منورې په لوري رهي (روان) شوی وو، او د قريشو په تجارتي قافلې باندې د حملې په نيت له اوله تر آخره پورې هيڅ نه وو وتلی؛ نو د دې عقيدې خاوندان في الحقيقت غـواړي، چې د حديثو، سيرو، او د قـرآني اشاراتو ټولې ذخيرې له خپلو مجعولاتو څنې قربان کړي.

د دې مسئلې تفصيل په «الجهاد الکبير» او «الشهاب» کې ليکلی شوی دی، او ځای په ځای په دغو صفحاتو کې هم نور لازم معلومات د هغه په نسبت ليکلي کيږي، ان شاء الله تعالى .

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْاَنْفَالِ ۗ قُلِ الْاَنْفَالُ لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ ۖ وَاَطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗٓ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ① اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِرَ اللّٰهُ وَجِلَتْ قُلُوْبُهُمْ وَاِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ اٰيٰتُهٗ زَادَتْهُمْ اِيْمَانًا وَّعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ② الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ③ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ حَقًّا ۗ لَهُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَّرِزْقٌ كَرِيْمٌ ④

پوښتنه کوي دوی له تا نه (ای محمده !) له (حکمه د) غنائمو څخه، ووايه (دوی ته چې اموال د) غنيمتونو خاص الله لره دي او رسول (د الله) لره دي (چې تقسيم يې کړي سم له شرعي اصولو سره)، پس وويريږئ تاسې له الله نه، او اصلاح وکړئ تاسې د هغه حال چې په منځ ستاسې کې دی (يعنې پخپلو منځونو کې سره دوستي وکړئ ! او نزاع پريږدئ)، او حکم ومنئ تاسې د الله او (حکم ومنئ تاسې) د رسول د الله که يئ تاسې مؤمنان (په حقه سره). بېشکه خبره همدا ده چې حقّاني مؤمنان هغه کسان دي کله چې ياد کړی شي (دوی ته نوم د) الله؛ نو ويريږي زړونه د دوی، او کله چې ولوستې شي پـر دوی بانـدې آيتونو (کلام) د الله؛ نـو زياتوي دغه (آيتونه) دوی لره ايمان (د دوی)، او پر رب (پالونکي) خپل باندې توکل (اعتماد) کوي دوی. (دوی) هغه (مؤمنان) دي چې قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو) دوی لمونځ، او له ځينې د هغه ماله چې ورکړی دی مونږ دوی ته؛ نفقه کوي (لګوي په لاره د الله کې). دغه کسان همدوی دي مؤمنان په حقه سره، شته دي دوی ته درجې په نزد د رب د دوی او مغفرت (بخښنه) او رزق نېک (د عزّت).

تفسير: «أنفال» جمع د «نفل» دی، او غنائمو ته ځکه «نفل» وايه شي، چې رب العزت د فضل او مرحمت محض يوه عطا ده، په بدر کې هغه د غنيمت مال چې په لاس راغلی وو؛ په اصحابو کرامو کې د هغه په نسبت نزاع وه، هغه ځلميان چې مخکې وړاندې تللي وو او جنګونه يې کړي وو؛ دوی د غنيمت ګرد اموال خپل حق ګاڼه، پاخه او سپين ږيري سړي چې د ځلميانو تر شا ولاړ وو؛ داسې به يې ويل چې: «مونږ په لار ښوونه او اعتماد تاسې ته دغه توره، فتحه او برى په برخه شوی دی، نو ځکه ښايي چې غنيمت مونږ ته هم راکړ شي» هغه جماعت چې د نبي کريـم صلى الله عليه وسلم حفاظت يي کاوه، او ددوی په مبارک حضور کې حاضر ولاړ وو، دوی هم خپل ځانونه د دغو اموالو مستحق بلل، په دغو آيتونو کې دغه خبره ښوولې شوې ده، چې فتح يواځې د الله تعالى په مرسته (مدد) ستاسې په برخه شوې ده، د بل هيڅ يوه په توره، زور، تدبير، لارښوونه او اعتماد سره تاسې هغه نه ده حاصله کړې، نو د دغو اموالو مالک الله ذو الجلال دی، او رسول الله صلى الله عليه وسلم دی، څرنګه چې الله جل جلاله

د خپل رسول په وسیله حکم ورکړی دی؛ ښاي چې له همغه حکم سره موافق دې غنائم هم ووېشل شي، د دې حکم تفصیل به وروسته راشي.

﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ بِٱلْحَقِّ وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ۝٥ يُجَٰدِلُونَكَ فِى ٱلْحَقِّ بَعْدَمَا تَبَيَّنَ كَأَنَّمَا يُسَاقُونَ إِلَى ٱلْمَوْتِ وَهُمْ يَنظُرُونَ ۝٦﴾

(دا د قسمت کراهیت دوی ته داسې وو) لکه چې ایستلی وې ته رب ستا له کوره خپله په حقه سره، حال دا چې بېشکه یوه (ډله) له مؤمنانو خامخا ناخوښه وو (له دې ایستلو چې ورته تیار نه وو). حال دا چې جګړه کوله دوی له تا سره په حقه خبره کې (چې جهاد وو) وروسته له هغه چې ښکاره شوه (دوی ته فتح ستا په بشارت، داسې جګړه یې کوله په کولو د جهاد کې) ګواکې بیولې کیږي دوی طرف د مرګ ته په داسې حال کې چې دوی ویني (عیناً مرګ په سترګو).

تفسیر: یعنې فکر وکړئ ! چې په همدغه د «بدر» په جنګ کې له شروع څخه تر آخره پورې په څه ډول سره د الله تعالی امداد، تایید، او توفیق د مسلمانانو په برخه وو، هم دغه پاک الله وو؛ چې د نصرت صادقه وعده یې د اسلامي دین په نسبت وفرمایله، او خپل نبي صلی الله علیه وسلم یې د یوه حق امر یعنې له کفارو سره د (جهاد) کولو لپاره له مدینې منورې څخه د باندې د بدر په ډګر کې په داسې وخت کې راوویست، چې د مسلمانانو یوه ډله د قریشو له لښکرو سره پر جنګېدلو راضي او خوښه نه وه.

یعنې د جهاد په وسیله د اسلام او د اسلام د تابعانو غالب کېدل او د ابو جهل له لښکرو سره مقابله پر دوی باندې دومره شاقّه او ګرانه وه؛ لکه چې چا ته په رڼو سترګو د مرګي په خوله کې ورتلل سخت او مشکل ښکاري، بیا هم الله تعالی په خپل توفیق سره د وی د جنګ ډګر ته بوتلل، او په خپل امداد سره یې مظفر او منصور وګرځول، او له غنیمت سره یې سالم بېرته راوستل.

نو څرنګه چې د الله تعالی په مرستې (مدد) سره دغه لوی مهم له اوله تر آخره پورې پای (آخر) ته رسېدلی دی؛ نو د غنیمت اموال هم ښایي چې د هغه مال وګڼل شي، او د هغه هر هغه مصرف چې پاک الله د خپل رسول په وسیله در ښیي، ښایي چې همله دې تقسیم او صرف کړ شي. !

تنبیه: د ﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ﴾ کاف مې په خپل تقریر کې یواځې د تشبیه لپاره نه دی اخیستی، بلکه د ابو حیّان «رحمه الله» له تحقیق سره موافق د تعلیل په معنی باندې مې مشتمل کړی دی، لکه چې په ﴿وَاذْكُرُوهُ كَمَا هَدَىٰكُمْ﴾ کې علماوو تصریح کړې وه، او د ﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ﴾ الی آخر الآیات مضمون مې د ﴿قُلِ ٱلْأَنفَالُ لِلَّهِ وَٱلرَّسُولِ﴾ یو سبب ګرځولی دی، او د ابو حیان «رحمه الله» او د نورو په شان مې «أعزك الله» او نور مې مقدر نه دی منلی.

او هم مې د آیت په تقریر کې د «روح المعاني» د صاحب «رحمه الله» له تصریح سره سمه اشاره کړېده، چې د ﴿كَمَآ أَخْرَجَكَ رَبُّكَ مِنۢ بَيْتِكَ﴾ د دوی یواځې خروج عن البیت مراد نه دی، بلکه له «خروج من البیت» څنې ترې (دخول في الجهاد) پورې اوږده او پراخه زمانه مطلوبه ده، چې په کې ﴿وَإِنَّ فَرِيقًا مِّنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ لَكَٰرِهُونَ ۝ يُجَٰدِلُونَكَ فِى ٱلْحَقِّ﴾ او نور ګرد احوال او وقائع سره شامل او واقع شوي دي.

د یوې ډلې کراهیت خو عین د خروج عن المدینه په وخت کې لا ښکاره شوی وو، لکه چې د صحیح مسلم شریف او د طبري شریف په حواله د «الأنفال» د سورت په اوله مقدمه کې بیان شوي دي، د مجادلې صورت به غالباً وروسته له هغه د کفارو د لښکرو د خوځېدلو د اطلاع رسېدلو په وخت کې د «صفراء» په مقام کې واقع شوی وي، له دې پوهېدلو څخه به د ځینو مبطلینو د مغالطو استیصال په ښه ډول سره وشي.

وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللَّهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ وَتَوَدُّونَ أَنَّ غَيْرَ ذَاتِ الشَّوْكَةِ تَكُونُ لَكُمْ وَيُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُحِقَّ الْحَقَّ بِكَلِمَاتِهِ وَيَقْطَعَ دَابِرَ الْكَافِرِينَ ﴿٧﴾ لِيُحِقَّ الْحَقَّ وَيُبْطِلَ الْبَاطِلَ وَلَوْ كَرِهَ الْمُجْرِمُونَ ﴿٨﴾

او (ياد کړئ) هغه وخت چې وعده کوله له تاسې سره الله يو د دوو طائفو (ډلو څخه چې قافله يا لښکر وو) چې بېشکه دغه تاسې لره ده، او ستاسې خوښه وه چې بېشکه هغه بې وسلې بې زحمته (بې اغزي ډله دې) وي تاسې ته، او اراده لري الله د دې چې ښکاره ثابت کړي رښتيا په خبرو خپلو سره، او پرې کړي بېخ د کافرانو لپاره د دې چې ظاهر غالب کړي حق (دين د اسلام)، او (لپاره د دې چې) ظاهر کړي بطلان د باطل (کفر)، او اګر که بده مني (دا خبره) مجرمان (کافران او پرې خپه کيږي).

تفسير: مسلمانانو غوښتل چې پر تجارتي قافلې باندې دې حمله وشي، چې يو اغزی هم د دوی په پښو کې چوخ نشي، او ډېر مال او اسباب هم په لاسونو ورشي، ليکن د الله تعالی رضا داسې وه، چې په دغه وړوکي کم قوته او بې سامانه ټولي ته پر يوه کثير التعداده اومرتب او منظم او له شوکته ډک لښکر باندې فتح او بری ورعطا کړي، او خپلې ګردې کلمې او خبرې په دغې وسيلې سره په يوه حيرانوونکي ډول رښتيا او ثابتې کړي، او د مکې معظمې د کفارو بېخ له سټه وکاږي، چې په دې ډول سره د الله تعالی د وعدې صداقت په يوه حيرت زياتوونکي اصول سره ظاهر شي، او د صدق صداقت او د کذب کذابيت د کفارو علی الرغم په صاف صاف ډول سره ښکاره شي، لکه چې همداسې هم وشو، او په بدر کې د قريشو اويا تنه لوی لوی سرداران ووژل شول، او اويا تنه نور مشران يې بنديان شول، او په دې ډول سره د کفارو ملاوې ماتې شوې، او د مکې معظمې د کفارو بنيادونه سره ولړزېدل، فلله الحمد والمنة !.

إِذْ تَسْتَغِيثُونَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ أَنِّي مُمِدُّكُمْ بِأَلْفٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُرْدِفِينَ ﴿٩﴾ وَمَا جَعَلَهُ اللَّهُ إِلَّا بُشْرَىٰ وَلِتَطْمَئِنَّ بِهِ قُلُوبُكُمْ وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

(ياد کړئ) هغه وخت چې استغاثه به کوله تاسې رب خپل ته نو الله ستاسو استغاثه قبوله کړه لپاره د (فرياد) ستاسې، چې بېشکه زه مرسته (مدد) کوونکی يم له تاسې سره په زرو تنو له پرښتو څخې يوه په بلې پسې راتلونکې. او نه وه ګرځولې (نه وه ورکړې) دغه (مرسته) الله مګر (ورکړې يې وه فقط) لپاره د دې چې زېری شي (د نصرت) او لپاره د دې چې مطمئن (آرام) شي په دغې مرستې سره زړونه ستاسې، او نه ده مرسته مګر (خو ده) له جانبه د الله، بېشکه الله ښه غالب قوي دی (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: دا قسم يو بل آيت په (۴ جزء د آل عمران سورت په (۱۲۶) آيت (۱۳) رکوع) کې هم تېر شوی دی، دلته دې هم همغه تفسير بيا وکتلی شي !، هو ! دومره ده چې هلته د پرښتو تعداد له (۳۰۰۰) څخه تر (۵۰۰۰) پورې بيان کړی شوی وو، که د دغو دواړو آيتونو واقعه يوه وي؛ نو ويلی کيږي چې: اول ځلې به يو زر کسيزه ډله راغلې وي، بيا به وروسته له هغې بله ډله راغلې وي چې د هغې تعداد به له درو زرو څخې تر پنځو زرو پورې رسېدلی وي، ښايي د ﴿مُرْدِفِينَ﴾ څخې همدې لورې ته اشاره وي.

إِذْ يُغَشِّيكُمُ النُّعَاسَ أَمَنَةً مِنْهُ وَيُنَزِّلُ عَلَيْكُمْ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً لِيُطَهِّرَكُمْ بِهِ وَيُذْهِبَ عَنْكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ وَلِيَرْبِطَ عَلَىٰ قُلُوبِكُمْ وَيُثَبِّتَ بِهِ الْأَقْدَامَ ﴿١١﴾

ياد کړئ هغه وخت چې واچوله (الله) په تاسې پر کالې (د خوب پرمښکی) لپاره د امن (تسکين) ستاسې له خپله جانبه، او نازلې کړې (الله) پر تاسې له (طرفه د) آسمانه اوبه لپاره د دې چې پاک

کړي تاسې په دغو (اوبو) سره، او لرې کړي له تاسې نجاست د شیطان او لپاره د دې چې قوت واچوي په زړونو ستاسې کې، او محکم کړي په هغو (اوبو) سره قدمونه ستاسې.

**تفسیر:** د «بدر» غزا في الحقیقت د مسلمانانو لپاره ډېره سخته ازموینه او د عظیم الشأن امتحان موقع وه، د مسلمانانو او د کافرانو په منځ کې دغه ړومبنی مهم او قابل الذکر تصادم وو، او بیا یې صورت هم داسې واقع شوی وو، چې کفارو لا له پخوا څخه پر ښو ښو ځایونو او د اوبو او نورو حاکمه وو نقاطو باندې قبضه کړې وه، او مسلمانانو په یوه ټیټ ځای کې موقع نیولې وه، چې په کې ډېرې داسې شګې وې چې تګ او راتګ په کې سخت مشکل او د تلونکي پښې به په کې ډېرې خښېدې، د ګرد او غبار او دوړو لامله هم سخت تکلیف او ربړ ورسېده، د اوبو د نشتوالي له سببه له یوه جانبه د اوداسه او غسل تکلیف او له بله طرفه له تندې څخه مسلمانان ډېر زیات وارخطا شوي وو.

په دغه وخت کې الله تعالی په خپل کامل رحمت سره یو زورور باران اوراوه، چې په هغه سره هغه ګردې شګې کلکې شوې، او د غسل او اوداسه لپاره اوبه ډېر شوې، او له ګرد او غبار او دوړو څخه هم وژغورل شول.

بالعکس په هغه ځای کې چې د کفارو لښکر وو، داسې سختې چېکړې او ختې پیدا شوې، چې دوی به درګرده په کې ښوییدل او خښېدل، کله چې دغه ظاهري پرېشانۍ ګردې لرې شوې، نو الله تعالی پر مسلمانانو باندې یو قسم پرمښکي او د خوب پرکالي او بې سدۍ په شان یوه وضعه راوستله، کله چې له هغې د دوی سترګې خلاصې شوې، نو د دوی له زړونو څخې خوف، هراس او وېره بېخي ورکه شوه.

په ځینو روایاتو کې راغلي دي، چې رسول الله مبارك او أبو بکر الصدیق رضي الله تعالی عنه ټوله شپه په عریش کې په زارۍ او دعا مشغول وو، په پای (آخر) کې پر رسول الله صلی الله علیه وسلم لږه پرکالي راغله، کله چې له هغې څخه یې سترګې خلاصې شوې، نو ویې فرمایل: خوشاله اوسئ ! چې جبرئیل ستاسې د مرستې (مدد) لپاره راځي !، کله چې له «عریش» څخه یې د باندې تشریف راوړ؛ نو د ﴿سَيُهۡزَمُ ٱلۡجَمۡعُ وَيُوَلُّونَ ٱلدُّبُرَ﴾ بشارت د دوی پر مبارکه ژبه جاري وو.

په هر حال هغه د رحمت باران بدنونه یې له بې اودسیو او زړونه یې له شیطاني وسوسو څخې پاک کړل، له بل لوري د شګو له کلکېدلو څخه په ظاهري ډول سره هم د دوی قدمونه ټینګ او ثابت شول، او د دوی له زړونو څخه خوف او وېره بیخي ووته، او بیخي ډاډه او مطمئن او زړور شول.

إِذۡ يُوحِي رَبُّكَ إِلَى ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ أَنِّي مَعَكُمۡ فَثَبِّتُواْ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْۚ سَأُلۡقِي فِي قُلُوبِ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلرُّعۡبَ فَٱضۡرِبُواْ فَوۡقَ ٱلۡأَعۡنَاقِ وَٱضۡرِبُواْ مِنۡهُمۡ كُلَّ بَنَانٖ ١٢ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ شَآقُّواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۚ وَمَن يُشَاقِقِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَإِنَّ ٱللَّهَ شَدِيدُ ٱلۡعِقَابِ ١٣ ذَٰلِكُمۡ فَذُوقُوهُ وَأَنَّ لِلۡكَٰفِرِينَ عَذَابَ ٱلنَّارِ ١٤

(یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې وحي وکړه رب ستا پرښتو ته (چې ووایئ مؤمنانو ته) بېشکه زه له تاسې سره یم (په نصرت او اعانت) نو ثابت کړئ تاسې هغه کسان چې مؤمنان دي (په نصرت او بشارت)، ژر به وغورځوم زه په زړونو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي وېره، نو ووهئ تاسې (سرونه د دې کفارو) له پاسه د ورمېږونو، او ووهئ تاسې له دغو (کفارو څخه هر هر بند) او ټولې ګوتې. دغه (وهل د کفارو) د دې لپاره دي، چې بېشکه دوی مخالفت کړی دی له الله او له رسول د دغه (الله) پر پرېښودلو (د شرعې)، او هر هغه څوك چې مخالفت کوي له الله او له رسول د الله؛ نو بېشکه الله سخت دی عذاب (د ده مخالفانو ته په دنیا او عُقبی کې). دغه

(ستاسې دنيوي عقوبت دى) نو وڅکئ تاسې دا (دنيوي عذاب اى کفارو !) او (وپوهېږئ چې) بېشکه مقرر دى کافرانو ته عذاب د اور (د دوزخ په آخرت کې).

**تفسير:** د «بدر» غزا د اهميت اندازه له دې نه ښه لګېدى شي، چې پخپله لعين ابليس د «کنانه» د لوى سردار «سراقة بن مالك مدلجي» په صورت ممثل شوى ابو جهل ته راغى، او د مشرکانو زړونه يې ډېر مطمئن او ښه ډاډه کړل، او هغوى ته يې اطمينان ورکړ چې نن پر تاسې باندې هيڅوک برى او غلبه نشي موندلى، او زما ګرده قبيله له تاسې سره ده، د ابليس تر بيرغ لاندې د شيطانانو ډېر لوى لښکر وو، چې د دې واقعې تفصيل وروسته راځي.

د دوى په مقابل کې الله تعالى د مسلمانانو د (مرستې) او امداد لپاره د خپل فوځ قطعات د جبرئيل او ميکائيل عليه السلام تر مشرى لاندې ولېږل، او ويې فرمايل چې: زه له تاسې سره يم، که شياطين د انسانانو په صورت سره متشکل شوي دي، او په دغه وسيله سره د کفارو حوصلې زياتوي، او د دوى له لوري جنګېدلو ته تيار دي، او د مسلمانانو په زړونو کې وسوسې وراچوي، او دوى وېروي؛ نو تاسې اى پرښتو ! د مظلومو او ضعيفو مسلمانانو زړونه مضبوط او ټينګ کړئ ! له دې لوري تاسې د دوى همت ورزياتوئ ! د هغه لوري به زه د کفارو په زړونو کې دهشت، رعب، خوف او وېره اچوم، تاسې د مسلمانانو په مرسته د دغه ظالمانو ورمېږونه (مرى) ووهئ ! (يعنې پرې يې کړئ)، او بند په بند او پيوند په پيوند يې جلا (جدا) او انډى انډى (ټوټې ټوټې) يې کړئ !.

په روايتونو کې مذکور دي، چې په «بدر» کې خلقو پرښتې په خپلو سترګو سره ليدلې، او هغه کفار چې د پرښتو له لاسه وژلي شوي وو؛ د هغو کفارو ځنې چې مسلمانانو وژلي وو؛ جلا (جدا) او له ورا پېژندل کېدل.

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا لَقِيتُمُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ زَحْفًا فَلَا تُوَلُّوهُمُ ٱلْأَدْبَارَ ﴿١٥﴾

اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو !) کله چې يو ځاى شئ تاسې (يا مخامخ شئ يا پېښ شئ په جنګ کې) هغو کسانو سره چې کافران شوي دي (د جنګ په ډګر کې)، په دغه حال کې چې دوى غونډ (او ګڼ) وي؛ نو مه ګرځوئ تاسې دغو (کفارو) ته شاوې خپلې (د تېښتې په نيت).

**تفسير:** «فرار من الزحف» يعنې له جهاده ځنې وتل او تېښتېدل، او په جنګ کې کفارو ته خپله شا اړول ډېره لويه ګناه او له أکبر الکبائرو ځنې ده، که د کفارو تعداد د مسلمانانو له شمېره يو په دوه وي؛ بيا هم فقهاوو مسلمانانو ته د شا آړولو اجازه نه ده ورکړې.

وَمَن يُوَلِّهِمْ يَوْمَئِذٍ دُبُرَهُۥٓ إِلَّا مُتَحَرِّفًا لِّقِتَالٍ أَوْ مُتَحَيِّزًا إِلَىٰ فِئَةٍ فَقَدْ بَآءَ بِغَضَبٍ مِّنَ ٱللَّهِ وَمَأْوَىٰهُ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ﴿١٦﴾

او هر هغه څوک چې وګرځوي دغو (کفارو) ته په دغه ورځ (د مخامخ کېدلو د جنګ) شاخپله، مګر په دې حال کې چې بېرته ګرځېدونکى (په هنر سره) لپاره د جنګ يا حال دا چې يو ځاى کېدونکى وي په طرف د بلې طائفې (د مجاهدينو)؛ نو په تحقيق رجوع يې وکړه او اخته شو په غضب (قهر) له (جانبه د) الله، او ځاى د اوسېدلو د ده دوزخ دى، او بد ځاى د ورتلو دى (دا دوزخ).

**تفسير:** يعنې تېښته او په شا کېدل که د کوم جنګي مصلحت لپاره وي، مثلا له بېرته تللو څخه وروسته بيا حمله وروړل ډېر مؤثر وي، يا جولان کوونکى وي لپاره د تودولو د جنګ يا لپاره د غيل (دوکه) ورکولو د دښمن چې په تېښته يې تېر باسي، او بيا پرې يرغل (حمله) وروړي، يا که د غازيانو يو ډله له خپل مرکزي فوځ څخه بې له لښکري مصلحتونو

ښله شوي وي، او دوی د خپل ځان د ساتنې لامله تېښته کوي، او له خپلو نورو ملګرو سره ځان ګډوي، نو داسې تېښته جرم نه دی، او ګناه فقط په هغه وخت کې ده؛ چې تېښته يواځې له وېرې او د ځان د ژغورنې (محفوظ کولو) او د حقيقي تېښتې په نيت وي.

(وفرمايل الله: که تاسې فخر کوئ ای مسلمانانو په قتل او حبس د کفارو)،

فَلَمْ تَقْتُلُوهُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ قَتَلَهُمْ ۚ وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ ۚ وَلِيُبْلِيَ الْمُؤْمِنِينَ مِنْهُ بَلَاءً حَسَنًا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٧﴾

نو نه دي وژلي تاسې دغه (کفار په خپل قوت سره په بدر کې) وليکن الله وژلي دي دغه (کفار چې مرسته يې تاسې ته درکړې ده)، او نه دي ويشتل کړي تا (ای محمده ! دغه ويشتل چې د بشر له شان څخه نه وي) په هغه وخت کې چې (ظاهري) ويشتل کړي وو تا؛ وليکن الله دغه و يشتل کړي وو، او (دا کار کړی وو الله) د دې لپاره چې وازمويي مؤمنان له نزده خپله په ازموينه (يا د دې لپاره چې احسان وفرمايي پر مؤمنانو له دربار خپل ښه احسان او انعام په اکرام د مرستې او ولجې) ښکې سره (چې د نصرت او غنيمت نعمت دوی ته ور کړي)، بېشکه الله ښه اورېدونکی (د ګردو اقوالو) ښه عالم دانا دی (په ټولو احوالو).

تفسير: کله چې جنګ سخت شو، نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د کفارو د لښکرو په لوري يو موټی شګې وشيندلې (وغورځولې)، او درې ځلې يې «شاهت الوجوه ـ قبيح شول مخونه د دښمنانو !» وويل، د الله تعالی په قدرت د دغو شګو ذرې د هر يوه کافر په سترګو کې ولوېدلې، او ګرد د خپلو سترګو په مښلو باندې لګيا شول.

له بل لوري مسلمانانو سمدلاسه يرغل (حمله) ورووړ، بالآخره ډېر کفار (لکه شين فصل) ورېبل او ووژل شول، په همدغه نسبت فرمايي چې: اګر که په ښکاره ډول سره شګې تا په خپل لاس سره وشېندلې، ليکن عادتاً هيڅ بشر داسې کار نشي کولی، چې د يوه موټي شګې ذرې د هر يوه کافر محارب سترګو ته ور ورسوي، او د يوه مسلح لښکر د تېښتې سبب وګرځي، دا يواځې د الله تعالی قدرت وو؛ چې يو موټی شګې يې د ګردو کافرو محاربينو په سترګو کې وغورځولې.

په تاسې بې وسلې او بې سامانه او لږو مسلمانانو کې دومره قوت او قدرت چېرې وو ! چې يواځې ستاسې په مټ او زور سره کفارو داسې ماتې وخوړه؟ !، دا خو د الله تعالی د قدرت اثر او اغېزه وه چې داسې متکبر او سرکښان يې د موت او فناء او ذلت او قيد په کنده کې وغورځول.

هو ! دا خبره ښکاره ده، چې ظاهرا دغه کار ستا د لاسونو په وسيله شوی، او ستا په لاسونو کې داسې يو فوق العاده قوت او قدرت پيدا کړ شو؛ چې تا هغه په خپل کسب او اختيار سره حاصلولی نشو، دغه واړه د دې لامله (له وجې) وکړل شول؛ چې د الله تعالی قدرت ظاهر شي، او پر مسلمانانو باندې پوره مهرباني او په ښه ډول سره احسان وشي، بېشکه الله تعالی د مؤمنانو دعاء او فرياد اوري، او د دوی افعال او احوال په ښه ډول ورمعلوم دي، او دی هم ښه پوهېږي چې پر مقبولو بندګانو په کوم وخت او څه ډول (طريقه) احسان مناسب دی؟.

ذَٰلِكُمْ وَأَنَّ اللَّهَ مُوهِنُ كَيْدِ الْكَافِرِينَ ﴿١٨﴾

دغه (تېر احسان وشو) او (دغه خبره حقه ده چې بېشکه الله) ضعيفوونکی د پلمې او تدبير د کفارو دی.

تفسير: يعني په دغه وخت کې هم الله تعالی د مکې معظمې د کفارو پلمې (فريبونه) او تدبيرونه ويجاړ او له خاورو سره يې برابر او لتاړ کړل، او وروسته له دې نه هم د دوی ګرد تدبيرونه خراب او سستوي.

إِن تَسْتَفْتِحُوا فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ ۖ وَإِن تَنتَهُوا فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَعُودُوا نَعُدْ وَلَن تُغْنِيَ عَنكُمْ فِئَتُكُمْ شَيْئًا وَلَوْ كَثُرَتْ وَأَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٩﴾

که غواړئ تاسې فتح (فيصله د جانبينو څخه د ښه لار موندونکي په خوا ای کفارو !)؛ نو په تحقيق راغله تاسې ته فتح (فيصله د ښه لار موندونکي په خوا) او که تاسې منع راوړه (له کفره او د مؤمنانو له جنګه)؛ نو دغه (منع بهتره او) خير دی تاسې ته، او که بيا راوګرځېدئ تاسې (جنګ او کفر ته)؛ نو موږ به هم راوګرځو (نصرت د مؤمنانو ته)، او له سره به دفع ونه کړي له تاسې ډله ستاسې هيڅ شی (له عذاب د الله نه)، او اګر که ډېره لويه هم وي دا (ډله ستاسې)، او (پوه شئ) چې بېشکه الله سره له مؤمنانو دی (په نصرت او ثواب ورکولو کې).

تفسير: دغه خطاب د مکې معظمې کفارو ته دی، دوی به له هجرت څخه پخوا رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ويل: ﴿مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ﴾ «څمونږ او ستاسې په منځ کې به دغه فيصله کله کيږي؟ که تاسې رښتيني يئ».

که څه هم د دغې خبرې پوره فيصله به د قيامت په ورځ کې کيږي، مګر يو ډول فيصله يې نن د «بدر» په ميدان کې هم تاسې وليده، چې په څه يو خارق العاده طريقې سره تاسې ته د کمزورو مسلمانانو له لاسونو سزا در ورسېده؟.

که اوس هم د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم له مخالفت او کفر او شرک څخه لاس واخلئ؛ نو بهتر دی او دنيوي او اخروي ګټې به ستاسې په برخه شي، او که بيا هم تاسې داسې وجنګېږئ؛ نو موږ به بيا هم په همدې قسم د مسلمانانو سره مرسته کوو، او په پای کې به تاسې ذليل او خوار يږئ !.

کله چې د الله تعالی تأييد له مسلمانانو سره دی؛ نو ستاسې ډلې او لښکرې که هر څومره ډېر وي، ستاسې په کار به هيڅ درنشي.

په ځينو روايتونو کې راغلي دي، چې ابو جهل او نورو کفارو د مکې معظمې څخه د «بدر» په لورې د رهي کېدلو په وخت کې د کعبې شريفې پردې په خپلو لاسونو نيولې، داسې دعاوې يې کړې وې چې: «يا الله ! له دواړو فريقو څخه هر يوه چې أهدی، عليا، او أکرمه وي؛ فتحه او بری د همغې ډلې روزي کړې ! او فساد اچوونکي مغلوب کړې !» نو په ﴿فَقَدْ جَاءَكُمُ الْفَتْحُ﴾ کې د هغه ځواب ورکړ شو.

يعنې همغې ډلې ته چې واقعي عليا او افضله ده؛ فتحه او بری نصيب شو، او مفسدان رسوا او خوار او ذليل شول.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ﴿٢٠﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) حکم ومنئ تاسې د الله او (حکم ومنئ) د رسول د الله، او مخ مه ګرځوئ تاسې له دغه (اطاعت د رسول الله څخه) حال دا چې تاسې اورئ (قرآن).

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ﴿٢١﴾

او مه کېږئ تاسې (ای مؤمنانو) په شان د هغو کسانو چې وايي واورېده مونږ، حال دا چې دوی نه اوري (په ګټورو اورېدلو سره).

تفسير: يعني په ژبه وايي چې واموورېده (خبره ستا او ومو مانه حکم ستا !) حال دا چې هغه اورېدل او منل به څرنګه وي، چې انسان سمه خبره واوري او پرې ونه پوهيږي؟ يا خو پرې وپوهيږي خو قبوله يې نکړي، پخوا هم يهودانو موسى عليه السلام ته ويلي وو: ﴿سَمِعۡنَا وَعَصَيۡنَا﴾ «وامو ورېده خبره ستا او ومو نه منله هغه خبره».

د مدينې منورې د منافقانو اصول داسې وو، چې د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم او د مسلمانانو په مخکې به يې تش په ژبه د اسلام اقرار کاوه، او په زړه به ترې منکران وو، په هر حال د صادق مؤمن شان دا دی، چې په زړه او په خوله او په عمل او په غياب او په حضور کې پر الهي او نبوي احکامو عمل وکړي، او تر اسلامي هداياتو ځان جار کړي.

﴿إِنَّ شَرَّ ٱلدَّوَآبِّ عِندَ ٱللَّهِ ٱلصُّمُّ ٱلۡبُكۡمُ ٱلَّذِينَ لَا يَعۡقِلُونَ ۝٢٢﴾

بېشکه بدتر د ټولو حيواناتو په نزد د الله (هغه دي چې) کاڼه دي (د حق له اورېدلو څخه) او ګونګيان دي (د حق له ويلو څخه) هغه کسان دي چې عقل نه لري دوی.

تفسير: هغو کسانو ته چې الله تعالى د ويلو لپاره ژبه او د اورېدلو لپاره غوږونه او د پوهېدلو لپاره زړه او دماغ ورعطا کړي وو، بيا دوی دغه ګرد قوتونه معطل کړل، نه په ژبې سره د حق ويل او د حق موندلو لپاره موفق شول، او نه يې په غوږونو سره د حق غږ واورېده، او نه يې په زړه او دماغ سره د حق د پوهېدلو کوښښ وکړ، الغرض د الله تعالى ګردې ورکړې شوې قواوې يې چې په حقيقت کې د هغو لوړو مقاصدو لپاره ورکړې شوې وې؛ په خپل اصلي کار کې صرف نه کړې، بلا شبهه داسې خلق له حيواناتو څنې هم بدتر دي.

﴿وَلَوۡ عَلِمَ ٱللَّهُ فِيهِمۡ خَيۡرٗا لَّأَسۡمَعَهُمۡۖ وَلَوۡ أَسۡمَعَهُمۡ لَتَوَلَّواْ وَّهُم مُّعۡرِضُونَ ۝٢٣﴾

او که معلوم وی الله ته په دوی کې څه خير؛ نو خامخا اورولي به يې وی دوی ته (په سماع قبول سره)، او که اورولي وی دوی ته (الله سره له دې چې ور معلوم دي دا چې په دوی کې هيڅ خير نشته)؛ نو هرومرو به ګرځيدلي وو دوی له حق نه حال دا چې دوی به څنګ کوونکي وو (له قبوله د حق عناداً او انکاراً).

تفسير: يعني اصلي خبره دا ده چې په دغو خلقو کې د نېکۍ رېښه (ريشه) او اساس (جرړه) له سره نشته، ځکه چې حقيقي نيکي هلته د انسان په برخه کيږي؛ چې د ده په زړه کې د حق د غوښتلو مينه او د هداياتو او د نورو حسناتو د قبلولو استعداد او لياقت وي، هغه قوم چې د حق غوښتلو هيڅ روح په کې نه وي، او د الله تعالى ورعطا شوي قوتونه په خپلو لاسونو خرابوي؛ نو ورو ورو په دوی کې د حق د قبول لياقت او استعداد نه پاتې کيږي.

نو ويې فرمايل چې الله تعالى د دوی په زړونو کې د خير او هدايت د قبلولو لياقت ونه ليد، که په دوی کې يې څه لياقت ليدی؛ نو له خپل عادت سره موافق به يې ضرور هغوی ته خپل آيتونه اورول، او دوی به يې پرې پوهول، باقي په دغه موجوده حالت کې که دوی ته آيتونه واوروې، او دوی پرې وپوهوې؛ نو دغه ضد او عناد کوونکي خلق سره له پوهېدلو هم د هغو قبلوونکي نه دي.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱسۡتَجِيبُواْ لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمۡ لِمَا يُحۡيِيكُمۡۖ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ
يَحُولُ بَيۡنَ ٱلۡمَرۡءِ وَقَلۡبِهِۦ وَأَنَّهُۥٓ إِلَيۡهِ تُحۡشَرُونَ ۝٢٤﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو ! غوږ ږدئ) حکم منئ تاسې (خاص) د الله او (حکم منئ خاص) د رسول (د الله) کله چې وبولي تاسې لپاره د هغه کار چې ژوندي

کوي تاسې (په دنیوي او اخروي ژوندون سره)، او پوه شئ تاسې چې بېشکه الله پرده کیږي په منځ د انسان او زړه د ده کې، او بېشکه شان دا دی چې خاص همده ته تاسې جمع کېږئ.

**تفسير:** يعنې الله تعالى او رسول صلى الله عليه وسلم د هغه عمل په لوري تاسې ته دعوت درکوي (مثلا جهاد او نور)؛ چې په هغه کې له اوله تر آخره ستاسې خير او ګټه (فائده) ده، نو د مؤمنانو شان دا دی، چې د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دعوت په مقابل کې على الفور (لبّيک) ووايي !او له زړه يې ومني !، هر وخت او هر ځای ته چې پاک الله دوی وبولي؛ ښايي دوی خپل ګرد کارونه او مشغولتياوې پرېږدي، او همغلته خپل ځانونه ورسوي.

﴿وَاعْلَمُوٓا﴾ الآية ـ «او پوه شئ تاسې چې بېشکه الله پرده کیږي په منځ د انسان او زړه د ده کې، او بېشکه شان دا دی چې خاص همدغه الله ته تاسې جمع کېږئ»، يعنې د الهي حکم په ځای کولو کې تعطيل او ځنډ (ډيل) مه کوئ ! ښايي چې لږ وروسته ستاسې زړونه همداسې پاتې نشي، ځکه چې انسان پر خپل زړه باندې واک او قبضه نه لري، بلکه زړه د الله تعالى په اختيار کې دی، په هر لوري يې چې اراده وفرمايي؛ اړوي يې، بېشکه الله تعالى ابتداء په خپل مرحمت هغه نه اړوي، او نه مهر پرې لګوي، هو ! کله چې بنده د اسلامي احکامو په امتثال او تعميل کې سستي او لټي وکړي؛ نو په سزا کې يې هغه اړوي، يا که حق غوښتل پرېږدي، او ضد او عناد غوره کړي؛ نو مهر پرې لګوي.

وَاتَّقُوا فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنكُمْ خَاصَّةً ۖ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢٥﴾

او ځان ساتئ تاسې له هغې فتنې (فساد ګناه) څخه چې نه رسيږي (عقوبت يې يواځې) همغو کسانو ته چې ظلم يې کړی وي (په کولو د ګناه سره) له تاسې ځنې خاص (او يواځې، بلکه عمومي به وي)، او پوه شئ چې بېشکه الله سخت دی عذاب (د ده مخالفانو ته په دنيا او عُقبا کې).

**تفسير:** يعنې (له داسې ګناه ځنې تاسې ځان ډېر ساتئ؛ چې کوونکي او نه کوونکي دواړه په کې لاهو کيږي، لکه د جهاد او بدعتونو او نفاق او شقاق د ظهور په وخت کې سستي)، فرض يې کړئ ! که د يوه قوم اکثرو افرادو د ظلم او د عصيان اصول اختيار کړه، او څه خلق له هغو څخه جلا (جدا) پاتې شول، او غوړه مالي يې غوره کړه، نه يې نصيحت وکړ، او نه يې ترې د نفرت اظهار.

نو دغه فتنه ده، چې د دې په ضمن کې هغه ظالمان او دغه پټې خولې خوشامندګران به ګرد سره راځي، نو کله چې عذاب راشي؛ ګرد به على حسب المراتب په هغه کې شامل وي، او هيڅوک به ترې نه وي خلاص.

له دې تفسير سره موافق د دغه آيت مقصود به داسې وي چې: د الله جل جلاله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د حکم د منلو لپاره هم پخپله تاسې تيار اوسئ ! او هم سرکښانو ته نصيحت کوئ او پوهوئ يې ! که دوی ستاسې نصيحت ونه مني؛ نو د هغوی ځنې د خپلې بېزاري اظهار وکړئ.

وَاذْكُرُوٓا إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِى الْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَـَٔاوَىٰكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٢٦﴾

او ياد کړئ تاسې هغه وخت چې تاسې لږ ضعيفان (مغلوبان) کړی شوي وئ په ځمکه کې، ويرېدئ تاسې له دې نه چې وبه تښتوي په جلتۍ سره تاسې خلق (يعنې مغلوب به کړي تاسې قريش يا پارس يا روم)؛ نو ځای درکړ (الله) تاسې ته، اوقوت يې درکړ تاسې ته په کومک (مدد) خپل سره، او روزي يې درکړه تاسې ته له طيّباتو (پاکو شيانو لکه غنائم) لپاره د دې چې تاسې شکر وباسئ !.

تفسير: يعني د قلّت او ضعف له کمانه د الله تعالی په حکم (جهاد) کې سستي مه ښکاروئ، وګورئ له هجرته پخوا بلکه له هغه وروسته هم ستاسې شمېر لږ وو، وسله او سامان هم تاسې نه درلود (لرلو)، کله چې خلقو ستاسې کمزوري لېدله؛ نو طمع یې کوله چې تاسې وخوري، او هضم مو کړي، او تاسې ته هر وخت هم دغه اندېښنه درپېښه وه، نه چې د اسلام له دښمنانو سره ځمونږ جنګ او جګړه ونښلي او مونږ د هغوی په لاس کې ولوېږو، او هغوی مو د مرغانو په شان په خپلو منګولو او منبوکو کې سره چېرې وتښتوي، مګر الله تعالی تاسې ته په مدینه منوره کې هستوګنه درکړه، او د انصارو او مهاجرینو په منځ کې مو د ورورګلوۍ یې ساري سلسله قائمه کړه، بیا یې د «بدر» په غزا کې تاسې ته څرنګه غیبي مرسته درورسوله، چې د کفارو بېخ مو وویست، تاسې ته یې ای مسلمانانو شانداره بری او فتح درکړه !.

د غنیمت مال او د بندیانو فدیه یې هم درکړه، الغرض حلال، طیب، پاک شیان او د نعمتونو انواع او اقسام یې درعطا کړل، چې تاسې د الله تعالی شکرګزار بندګان شئ.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَخُونُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ وَتَخُونُوٓا۟ أَمَٰنَٰتِكُمْ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٧﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) مه کوئ خیانت له الله سره او (مه کوئ خیانت د الله) له رسول سره، او (مه) کوئ خیانت تاسې په امانتونو خپلو کې حال دا چې تاسې پوهېږئ (چې د امانت ساتل واجب دي).

تفسیر: د الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره خیانت دا دی: چې د هغو د احکامو مخالفت وکړ شي، په ژبې سره خپل ځانونه مسلمان بولي او د کفارو عمل وکړي، یا هر هغه کار باندې چې د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خوا مأمور شوی وي، په هغه کې تګي برګي وکړي، یا د پاک رسول اسرار نورو ته ښکاره کړي، یا د غنیمت له مال څخه غلا وکړي، یا د دغو په شان نور ناروا کارونه وکړي، په هر حال په هغو ګردو امانتونو کې چې د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم یا د بندګانو له خوا تاسې ته سپارلی شوي وي؛ له خیانت څخه ځان وژغورئ (بچ کړئ)، په دغو کې هر قسم حقوق الله او حقوق العباد راغلل.

وَٱعْلَمُوٓا۟ أَنَّمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَأَوْلَٰدُكُمْ فِتْنَةٌ وَأَنَّ ٱللَّهَ عِندَهُۥٓ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿٢٨﴾

او پوه شئ تاسې چې بېشکه مالونه ستاسې او اولاد ستاسې ابتلاء (ازموینه) ده، او بېشکه الله په نزد د ده اجر (ثواب) ډېر لوی دی، (بهتر له هر شي نه نو په طلب کې یې اوسئ).

تفسیر: یعني ستاسې اموال او اولاد فتنه ده، چې مو منع کوي له کارونو د آخرت څخه، او سبب دی د واقع کېدو ستاسې په ګناه او په عذاب کې، یا سبب دی د محنت چې تاسې الله تعالی پرې ازمويي؛ نو د دوی له د ډېره محبت له کبله خیانت مه کوئ، انسانان علی الأکثر د مال او اولاد لامله له نورو بندګانو څخه غلا کوي، نو ځکه یې تنبیه وفرمایله ؛چې د امانتدارۍ هغه قدر او قیمت او لوړوالی چې د الله تعالی په دربار کې شته؛ هغه په دنیوي مال او اولاد او نورو شیانو کې له سره نشته.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِن تَتَّقُوا۟ ٱللَّهَ يَجْعَل لَّكُمْ فُرْقَانًا وَيُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّـَٔاتِكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٢٩﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) که وویرېږئ تاسې له الله (او پرهېزګاري اختیار کړئ له ګناهونو څخه) وبه کړي ستاسې لپاره فیصله (د مؤمنانو په عزت او د

کافرانو په ذلت)، او لري به کړي له تاسې ګناهونه ستاسې، او مغفرت به وکړي تاسې ته، او الله څښتن (خاوند) د فضل (رحمت، احسان) ډېر لوی دی.

تفسیر: یعنې که له الله تعالی څخه ووېرېږئ او د تقوی لار غوره کړئ؛ نو الله تعالی به ستاسې او ستاسې د مخالفانو په منځ کې فیصله وکړي، او ستاسې کور کهول به همداسې د کفارو په لاسونو کې ګرفتار نه پاتې کېږي، او در به کړي تاسې ته «فرقان» یعنې هدایت چې په هغه سره به حق له باطله بېلوئ، یا د دارینو نجات، یا نصرت پر دښمنانو، یا خلاصی له شبهاتو ، یا ظهور او شهرت په تمام عالم کې.

وَإِذْ يَمْكُرُ بِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِيُثْبِتُوكَ أَوْ يَقْتُلُوكَ أَوْ يُخْرِجُوكَ ۚ وَيَمْكُرُونَ وَيَمْكُرُ اللَّهُ ۖ وَاللَّهُ خَيْرُ الْمَاكِرِينَ ﴿٣٠﴾

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې مکر فرېب به کاوه ستا په خلاف هغو کسانو چې کافران شوي وو، لپاره د دې چې بندي کړي یا ووژني تا یا وباسي تا (له مکې نه)، او پټ چال او فرېب جوړوي (دوی تاته) او (د دوی د فرېب او چال په مقابل کې د دوی سره) چال کوي الله (تعالی)، او الله (تعالی) له ټولو چال کوونکو څخه ښه او بهتر چال کوونکی دی.

تفسیر: پخوا له هجرته د مکې معظمې کفار په «دار الندوه» کې سره ټول شول، او مشوره یې سره وکړه، چې د محمد صلی الله علیه وسلم په نسبت څه وکړی شي، ځینو به ویل چې: «بندي کړی شي، او ښه دې ژوبل هم کړی شي !»، د ځینو رایه داسې وه چې: «له وطنه دې وشړل شي ! چې د تل لپاره د ده له اندېښنې څخه نجات و مومو»، په پای (آخر) کې د ابو جهل له رایې سره موافقه داسې فیصله وشوه چې: «د عربو د ګردو (ټولو) قبائلو څخه دې یو یو زړور ځلمی انتخاب او غوره شي ! او دغه قوي او پیاوړي (بهادر) ځلمیان دې سره ټول لاس یو کړي ! او یو ځلي دې په خپلو تورو سره پر محمد صلی الله علیه وسلم باندې ګزار وکړي ! څو بني هاشم له ګرد عربو سره جنګ ونه کړی شي، او پر عربو باندې د محمد صلی الله علیه وسلم دیت واوړي، او پر ګردو قبیلو باندې وویشل شي».

پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته پرښتو اطلاع ورکړه چې «پخپله بستره باندې علي کرّم الله وجهه ویده کړئ، او د دغې ټولنې په سترګو کې چې ستاسې د قتل لپاره سره ټول شوي دي؛ خاورې واچوئ، او د باندې د هجرت په قصد ووځئ !».

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا قَالُوا قَدْ سَمِعْنَا لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هَٰذَا ۙ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣١﴾

او کله چې ولوستلی شي پر دوی باندې آیتونه زمونږ؛ نو وایي دوی په تحقیق واورېده مونږ (دغه کلام)، که وغواړو مونږ؛ نو خامخا وبه وایو مونږ هم په مثل د ده، نه دی دغه (کلام) مګر خو دی د دروغو لیکل (او باطل احوال) د پخوانیو.

تفسیر: نضر بن الحارث به ویل: که مونږ وغواړو نو د قرآن پـه شان کـلام جوړولی شو، په دغه قرآن کې خو پرته له چټي (بېکاره) قصو او له کاره وتلو افسانو څخه بل شی نشته، مګر پاک قرآن هم د ګردو (ټولو) جګړو فیصله پر همدغې خبرې کړېده، چې ده بیا ولې دغه خپله ادعا پای (آخر) ته ونه رسوله؟

وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣٢﴾

او (ياد کړه) هغه وخت چې وويل دغو (کفارو) يا الله ! که چېرې وي دغه (قرآن يا دين) هم دغه حق (لکه چې محمد يې وايي نازل شوی) له نزده ستا؛ نو راووروه پر مونږ باندې کاڼي له آسمانه، يا راوړه (راولېږه) (بل کوم قسم) عذاب دردناک.

تفسير: په دغه آيت کې د مکې معظمې د مشرکانو د انتهايي جهل او شقاوت او عناد او بغاوت اظهار دی، يعنې دوی به ويل چې: يا الله ! که په واقع کې هم دغه محمدي دين چې مونږ په دغومره اوږده موده کې په ډېر شد او مد سره د هغه په تکذيب کې لگيا يو، حق وي؛ نو ولې د عذاب په نزول کې دومره ځنډ (تأخير) کيږي؟ او ولې د تېرو اقوامو په شان پر مونږ باندې د کاڼو باران نه ورېږي؟ يا د هغوی په شان په بل کوم عذاب مونږ ولې نه اخته کيږو؟ يا ځمونږ بيخي استيصال او بېخ کني ولې نه کيږي؟ ولې مو بېخ او بکر له سته نه باسې؟.

وايې چې: دغه دعاء ابو جهل دمکې معظمې ځخه د وتلو په وخت کې کعبې شريفې ته مخامخ کړې وه، بالآخر هغه شی يې چې غوښتنی وو؛ د هغه يوه نمونه يې په بدر کې وليده، او دی پخپله سره له (۶۹) نورو مشرانو د کمزورو او بې وسلې او بې سامانه مسلمانانو له لاسه ووژلی شو، او اويا تنه نور مشران هم د اسارت او بندې توب په ذلت کې گرفتار شول.

وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ ۚ

او نه دی الله چې په عذاب کاندې دوی حال دا چې ته (ای رسوله) په دوی کې يې.

تفسير: «سنت الله» همدا دی، چې هر کله پر کوم قوم د انبياوو عليهم السلام د تکذيب لامله عذاب نازلوي، خپل رسول د دوی له منځه باسي، کله چې الله تعالى محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم له مکې معظمې ځخه بېل کړ، نو وروسته له هغه د مکې معظمې مشرکان د «بدر» په عذاب کې مبتلا شول.

وَمَا كَانَ اللَّهُ مُعَذِّبَهُمْ وَهُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿٣٣﴾

او (بل دا چې) نه دی الله عذابوونکی حال دا چې دوی مغفرت غواړي.

تفسير: يعنې په دوی کې مستغفران دي، هغه ضعفاء د مؤمنانو چې په دوی کې پاتې شوي دي، يا دوی پخپله استغفار وايي، نو ځکه عذاب پرې نه راځي، ولې چې دوه شيان د عذاب د نزول مانع دي:

(۱): د يو قوم په منځ کې د رسول موجوديت.

(۲): استغفار، يعنې په مکه معظمه کې د محمد صلى الله عليه وسلم له برکته عذاب نه نازلېده، اوس پر هغوی باندې عذاب راغی، همداسې تر هغه پورې چې گنهگار نادم وي، او توبه باسي؛ نو نه نيول کيږي، اگر که ډېر لوی گنهگار هم وي.

رسول الله مبارک فرمايلي دي، چې د گناهگارانو پناه دوه شيان دي:

(۱) ځما وجود. (۲): استغفار، کذا في الموضح.

وَمَا لَهُمْ أَلَّا يُعَذِّبَهُمُ اللَّهُ وَهُمْ يَصُدُّونَ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَا كَانُوا أَوْلِيَاءَهُ إِنْ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَّا الْمُتَّقُونَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۳۴﴾

او څه دي دوی ته چې نه به په عذابوي دوی الله (پس له وتلو ستا او مؤمنانو له دوی نه) حال دا چې دوی منع کوي (خلق) له (دخول د) مسجد حرام څخه، او نه دي دوی واکداران د دغه (مسجد حرام)، نه دي واکداران د ده مګر (دي) متقیان، او لیکن اکثر د دوی نه پوهیږي (په دې چې دوی لره واکداري نشته).

تفسیر: یعنې د عذاب نه راتلل بنا پر هغو دوو سببونو دي، چې مخکې مذکور شول، که نه ستاسې شرارتونه او ظلم او شقاوت داسې شیان دي، چې د هغو په مقابل کې ښایي فوراً عذاب راشي، له دې نه به زیات ظلم څه وي؟ چې موحدین حرم شریف ته له راتګ او د الله جل جلاله له عبادت څخه په راز راز (قسم قسم) پلمو (تدبیرونو) او حیلو منع کوي، او دوی هلته نه پرېږدي چې لاړ شي؟.

د دوی ظلم او تېری دا دی چې د دې ظلم د جواز لپاره دغه سند وړاندې کوي؛ چې مونږ د حرم شریف متولیان او واکداران یو، هر چا ته چې زړه مو وغواړي د راتلو اجازه ورکوو، یا یې نه پرېږدو چې راشي، حال دا چې د حرم شریف متولیان یواځې متقیان او پرهېزګاران کېدی شي، مشرک او بد عمل سړی له سره د هغه حقدار نشي کېدی.

لیکن له دوی څخه ځینې کسان علی الأکثر له خپله جهالته داسې وایي چې مونږ د ابراهیم علیه السلام اولاده یو، او له فلاني قبیلې څخه یو، او د کعبې شریفې «تولیت» ځمونږ موروثي حق دی، چې د هغه لپاره کوم خاص قید او شرط نه دی پکار، نو دا یې راوښوول چې په اولاده د ابراهیم علیه السلام کې دغه حق د هغه کېدی شي چې متقي وي، او د داسې بې انصافانو حق نشي کېدی، چې له هر چا څخه چې دوی خپه وي؛ نو هغه ته د کعبې شریفې د راتللو اجازه نه ورکوي.

وَمَا كَانَ صَلَاتُهُمْ عِنْدَ الْبَيْتِ إِلَّا مُكَاءً وَتَصْدِيَةً ۚ فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿۳۵﴾

او نه وو لمونځ (عبادت) د دغو (کفارو) په نزد د کعبې مګر شپېلي وهل او لاسونه ټکول، (الله فرمایي): نو وڅکئ تاسې عذاب په سبب د هغه چې وئ تاسې چې کفر به مو غوره کاوه.

تفسیر: یعنې حقیقي لمونځ کوونکي له مسجده منع کوي، نو پخپله د دوی لمونځ به څه ارزښت (قیمت) ولري؟ د کعبې شریفې بربنډ طواف کول، د ذکر الله په ځای شپېلي وهل، او لاسونه ټکول، لکه چې نن هم ډېر اقوام ناقوس وهل او زنګونه شرنګول لوی عبادت ګڼي.

الغرض: نه دوی په خپله عبادت کوي، نه نور خلق پرېږدي چې عبادت وکړي، او دغه بې معنی او چټي (بېکاره) خبرې عبادت ګڼي، ځینې وایي چې: دغه شپېلي وهل، او لاسونه ټکول د دې لپاره وو، چې د مسلمانانو په عبادت کې خلل واچوي، او د تمسخر او استهزاء (ټوکې ټکالې) له لارې به یې داسې کول، والله أعلم.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ ۚ

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي نفقه کوي (لګوي) دوی مالونه خپل لپاره د دې چې منع کړي دوی (خلق) له لارې د الله څخه.

تفسیر: د «بدر» په غزا کې د کفارو له مشرانو ځنې دولسو سردارانو دا په غاړه اخیستې وه، چې هر یو تن به په یوه ورځ کې ګردو لښکرو ته ډوډۍ پخوي، لکه چې لس اوښان به هره ورځ د یوه له لوري حلالېدل، او پر لښکرو به خوړل

کېدل، بیا چې دوی ماتې ومونډله ؛نو د دغه مات شوي لښکر مجمع کله چې مکې معظمې ته ورسېده، ابو سفیان او د کفارو نورو مشرانو ته یې وویل: هغه مال چې تجارتي قافلې له شامه راوړی دی، هغه دې ګرد د اسلام په خلاف او له محمد څخه د انتقام اخیستلو په لاره کې ولګول شي !، لکه چې پر دغه خبره سره راضي شول، نو د داسې مال لګولو ذکر په دغه آیت کې راغلی دی.

فَسَيُنْفِقُونَهَا ثُمَّ تَكُونُ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً ثُمَّ يُغْلَبُونَ ۬ وَالَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ يُحْشَرُونَ ﴿٣٦﴾

نو ژر به نور هم ولګوي دغه مالونه، بیا به شي (دغه انفاق) پر دوی حسرت (پښېماني چې مال یې ځي او مطلب یې پرې نه حاصلېږي)، بیا به په آخر کې مغلوب شي، او هغه کسان چې کافران شوي دي (او په کفر کې مړه شي)؛ دوزخ ته شړلي (بیولي) کیږي.

تفسیر: یعنې کله چې په دنیا کې مغلوب او مقهور، او په آخرت کې معذب شي، نو د افسوس او حسرت لامله به خپلې ګوتې چیچي، چې مال مو هم له لاسه ووت، او بری مو هم په برخه نشو، لکه چې ړومبی به «بدر» کې او بیا په احد او نورو غزاګانو کې د کفّارو ګرد (ټول) مالي او جسماني قوتونه صرف شول، او هیڅ یوه ګټه (فائده) یې په لاس ورنغله.

لِيَمِيزَ اللَّهُ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ فَيَرْكُمَهُ جَمِيعًا فَيَجْعَلَهُ فِي جَهَنَّمَ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٣٧﴾

لپاره د دې چې بېل کړي الله خبیث (ناپاک کافر) له طیب (پاک مؤمن) څخه، او بیا کېږدي خبیث (ناپاک سره لاندې باندې) ځنې د ده په ځینو نورو باندې، نو راجمع به کړي دا (خبیثان) ټول، نو وبه یې غورځوي په دوزخ کې، دغه (خبیثان یا مال لګوونکي) همدوی زیانکاران دي.

تفسیر: یعنې د هغو په قسمت کې چې اسلام لیکلی شوی دی؛ هغوی به ګرد مسلمانېږي، او د هغوی مرګ چې په کفر کې لیکلی شوی دی؛ هغوی به ګرد په کفر کې مري، او ټول به دوزخ ته لاړ شي.

قُلْ لِلَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَنْتَهُوا يُغْفَرْ لَهُمْ مَا قَدْ سَلَفَ وَإِنْ يَعُودُوا فَقَدْ مَضَتْ سُنَّتُ الْأَوَّلِينَ ﴿٣٨﴾

ووایه (ای محمده !) هغو کسانو ته چې کافران شوي دي، که واوړي (بس کړي له کفره)، نو وبه بخښلی شي دوی ته هغه بدی چې په تحقیق پخوا تېرې شوې وې، او که بیا وګرځي (کلک شي په کفر او جنګ)؛ نو په تحقیق تېره شوې ده لاره (عادت د الله په حق) د پخوانیو (په نجات د مؤمنانو او هلاک د کافرانو).

تفسیر: یعنې که اوس هم له کفره او طغیانه او د اسلام له عداوته لاس واخلي، او د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم اطاعت اختیار کړي؛ لومړی دکفر په حالت کې څه ګناه او معاصي چې دوی کړي وي؛ هغه ګردې ورمعافېږي، «الإسلام یهدم ما قبله».

هو ! حقوق العباد به نه ورمعافیږي، څکه چې د هغو مسئله خو بېله ده.

او که بیا عود وکړي قتل، عداوت، کفر او معصیت ته؛ نو په تحقیق تېره شوې ده لاره عادت د الله په حق د پخوانیو کې، یعنې څرنګه چې د پخوانیو رسولانو علیهم السلام له تکذیبه او عداوته خلق تباه شوي دي، په دوی به هم تباهي راځي.

یا دا مطلب دی لکه چې په بدر کې د دوی نورو خپلوانو ته سزا ورکړې شوه، دوی ته به هم سزا ورکړې شي.

﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ ۚ فَإِنِ انتَهَوْا فَإِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٣٩﴾ وَإِن تَوَلَّوْا فَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَوْلَاكُمْ ۚ نِعْمَ الْمَوْلَىٰ وَنِعْمَ النَّصِيرُ ﴿٤٠﴾﴾

او وجنګېږئ (ای مؤمنانو !) له دغو (کفارو) سره تر هغه پورې چې نشي پاتې فتنه (فساد په ځمکه کې) او شي دین (حکم) ټول خاص الله لره (او نور ټول باطله ادیان محکوم شي)، نو که واوړي دوی (له کفره او اسلام راوړي)؛ نو بېشکه الله پر هغو عملونو چې دوی يې کوي ښه ليدونکی (بینا) دی. او که مخ وګرځوي دوی (له ایمانه)؛ نو پوه شئ (ای مؤمنانو !) چې بېشکه الله مولی (بادار ساتونکی) ستاسې دی، (الله) ښه مولی (او نېک بادار حامي او ساتونکی) دی او (الله نېک او ښه مددګار دی.

تفسیر: یعنې تر هغه پورې له کفارو سره وجنګېږئ چې په ځمکه کې فتنه او فساد پاتې نشي، او د کافرانو زور پاتې نشي: چې له ایمانه خلق منع کړي، یا د حق دین له محو کولو څخه مسلمانان وویرېږي، چې که اظهار یې وکړو؛ وبه وژلی شو، لکه چې د (فتنه) همدغه تفسیر د احادیثو په کتابو کې له ابن عمر او نورو اصحابو رضوان الله تعالی علیهم أجمعین څخه هم منقول دی.

﴿فَإِنِ انتَهَوْا﴾ : یعنې د هغو لپاره چې په ښکاره ډول (طریقه) له کفر او شرارته بېرته وګرځي؛ قتل نشته، د دوی د زړونو حال، او د مستقبل کیفیات دې الله تعالی ته وروسپارل شي ! هر ډول عمل او کار چې دوی کړی وي؛ هغه د پاک الله له علمه نه پټېږي، او تل ورته معلوم دی، مسلمان یواځې له ظاهري حال سره موافق پر عمل کولو مکلف دی:

وفي الحديث: «أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا: لا إله إلا الله، فإذا قالوها عصموا مني دماءهم وأموالهم إلا بحقها، وحسابهم على الله عز وجل» «زه مامور یم په دې چې جهاد وکړم د خلقو سره تر هغه چې ووايي دوی کلمه د لا إله إلا الله، نو کله چې وویله دوی دا کلمه نو ويې ساتلې ځما نه وینې خپلې (چې نه به وژل کیږي) او مالونه خپل مګر په حق سره (چې قصاص دی) او حساب د دوی سپارلی شوی دی الله عز وجل ته (که یې ښښي یا یې نه ښښي)»، یعنې مسلمانانو ته ښايي چې د الله تعالی په مرسته (مدد) او حمایت باندې اطمینان او اعتماد ولري ! او جهاد وکړي ! د کفارو له کثرت او د دوی له وسلو او سامان او اسباب څخه دې له سره ونه ویرېږي ! لکه چې د «بدر» په غزا کې یې ولیدل، چې الله تعالی د مسلمانانو خومره ښه مرسته (مدد) حمایت او امداد وفرمایه، (علمنا أن الله مولانا، نعم المولى ونعم النصير).

﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُم مِّن شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ وَمَا أَنزَلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا يَوْمَ الْفُرْقَانِ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٤١﴾﴾

او پوه شئ (ای مسلمانانو !) بېشکه هر هغه شی چې په غنیمت واخیست تاسې (له کفارو په غلبې سره) له یوه شي نه؛ نو بېشکه الله لره دی (حکم کول په) خمس د هغه (کې) او (دغه خمس ثابت دی) لپاره د رسول (د الله) او لپاره د خپلوانو (د رسول الله) او (لپاره د) یتیمانو او (لپاره د) مسکینانو (محتاجانو) او (لپاره د) مسافرانو (او پاتې څلور برخې دې لپاره د غازیانو، او صبر و کړئ پر دغه تقسیم ای مقاتلانو !) که ایمان لرئ په الله او په هغو (آیتونو یا ملائکو یا نصرت) چې نازل کړي

دي مونږ پر بنده خپل په ورځ د فيصلې کې (د حق له باطل څخه چې د بدر ورځ وه)، هغه ورځ چې سره مخامخ شولې دواړه جمعې (ډلې)، او الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځينې يې غلبه د لږ په ډېرو ده).

تفسير: د دې سورت په ابتداء کې يې فرمايلي وو: ﴿قُلِ الْأَنفَالُ لِلَّهِ وَالرَّسُولِ﴾ دلته د هغه لږ څه تفصيل کوي، چې هغه غنيمت چې د کفارو له جنګه وروسته د مسلمانانو په لاس راشي، د هغه خمس او پنځمه برخه د الله تعالى نياز دی، چې هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم وصولوي، او دی يې پر دغه پنځو مصرفونو لګوی شي:

(۱): په خپل ځان باندې.

(۲): پر خپلو خپلوانو باندې چې بني هاشم او بني المطلب دي، چې له پخوا راهيسي دوی د الله تعالى په لاره کې کار او د رسول الله صلى الله عليه وسلم نصرت او امداد يې کړی دی، او د اسلام له خاطره يا يواځې د قرابت او خپلوۍ له وجې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يې مرستې کړې دي، او د «زکات» او د نورو صدقاتو اخيستل پر دوی باندې حرام شوي دي.

(۳): پر يتيمانو (پلار مړيو) باندې.

(۴): پر محتاجانو مسلمانانو باندې.

(۵): پر مسافرانو باندې، بيا هغه نور څلور برخې غنيمت چې پاتې کيږي؛ پر غازيانو باندې تقسيم کيږي، سور ته دوه برخې او پلي (پياده) ته يوه برخه ورکوله کيږي.

﴿يَوْمَ الْفُرْقَانِ﴾ «د فيصلې له ورځې» څخه مراد «يوم البدر» دی، چې په هغه کې د حق او باطل ترمنځ ښکاره فيصله وشوه، په دغه ورځ کې حق تعالى خپل ډېر کامل بنده محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ته برى، فتح او نصرت ورکړ، او د ملائکو امداد يې ورولېږه، او د سکون او اطمينان کيفيت يې نازل وفرمايه، نو هغه کسان چې پر الله تعالى او د الله تعالى پر غيبي تأييداتو ايمان لري، نو پر دوی باندې له غنائمو څخه د الله تعالى پر نامه «خمس ـ پنځمه برخه» ايستل دومره دروند کار نه دی.

﴿وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾ : يعنې لکه چې الله تعالى په هغه ورځ کې تاسې مظفر او منصور ګرځولي يئ، هم دا اوس او په راتلونکي زمانه او په هر وخت کې ښه قادر دی؛ چې تاسې ته غلبه او فتوحات عنايت وفرمايي.

إِذْ أَنتُم بِالْعُدْوَةِ الدُّنْيَا وَهُم بِالْعُدْوَةِ الْقُصْوَىٰ وَالرَّكْبُ أَسْفَلَ مِنكُمْ ۚ وَلَوْ تَوَاعَدتُّمْ لَاخْتَلَفْتُمْ فِي الْمِيعَادِ ۙ وَلَٰكِن لِّيَقْضِيَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَن بَيِّنَةٍ وَيَحْيَىٰ مَنْ حَيَّ عَن بَيِّنَةٍ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۴۲﴾

(ياد کړئ ای مسلمانانو !) هغه وخت چې وئ تاسې په څنډې (غاړې) د (کندې) نژدې (مدينې ته) او وو دغه (کفار) په څنډې (د کندې هسې څنډه چې) لرې (وه له مدينې نه)، حال دا چې سواره (قافله) ښکته وو له تاسې، او که يو تر بله وعده کړې وه تاسې (د جنګ) نو خامخا به مخالفت کړی وی تاسې په دغه وعده کې، وليکن (بې له وعدې جمع کړئ تاسې الله) لپاره د دې چې پوره کړي الله هغه کار چې وو مقرر شوی (په ازلي علم د ده کې چې نصرت د احباوو او ذلت د اعداوو دی) لپاره د دې چې هلاک شي هغه څوک چې له شان يې هلاک وي پس له قيامه د حجت روښان څخه، او ژوندي پاتې شي هغه څوک چې له شان

يې ژوندون وي پس له قيامه د روښانه حجت، او بېشکه الله خامخا ښه اورېدونکی (د ګردو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسير: له نژدې څنډې (غاړې) څخه مراد د جنګ د ميدان هغه جانب دی؛ چې مدينې طيبې ته قريب وو، همداسې له لرې څنډې (غاړې) څخه مقصد هغه طرف دی؛ چې له مدينې منورې څخه لرې و، يعنې د أبو سفيان قافله مخ په ځوړې (ښکته) د سمندر په څنډه څنډه (غاړه غاړه) کې تلله، د قافلې او مسلمانانو په منځ کې د قريشو فوځ حائل شوی وو، که فريقين له پخوا څخه د جنګېدلو لپاره کوم وخت او نېټه مقررول غوښتل؛ نو ممکن وو چې په هغه کې څه اختلاف واقع کېده، يا د وعدې د رسېدلو په وخت کې به يې يوه ډله وړاندې وروسته کوله، ځکه چې له يوه جانبه مسلمانان د کفارو له تعداد او ظاهري اسلحې او سامان څخه وېره کې وو، او له بل طرف کفارو د مسلمانانو د حقانيت او الله پرستی او زړورتوب څنې وېرېدل، نو دواړو ته د جنګ په ذمه واری اخيستلو او د هغه په شرکت کولو کې تردّد او تقاعد پېښېدی شو، وليکن بې له وعدې يې سره جمع کړئ تاسې.

قريش د خپلې قافلې د مدد لپاره او تاسې پر قافلې باندې د حملې کولو لپاره راغلي وئ، قافله تېره شوه، او دواړه فوځونه د يوه ميدان پر دوو څنډو (غاړو) باندې سره ونښتل، حال دا چې يو د بل له حال څخه نه وو خبر، دغه د الله تعالى تدبير وو، که تاسې قصداً ورتلئ نو داسې په مناسب وخت به پر دوی نه رسېدئ، او د دغې فتحې څخه وروسته کافرانو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم صداقت ورښکاره شو، هغه چې مړه شول هم په يقين سره پوهيدلي مړه شول، او هغه چې ژوندي پاتې شول؛ هغوی هم حق په ښه ډول سره وپېژند، او وپوهيدل چې د الله تعالى الزام پوره شو، کذا في الموضح.

او ممکن دی له مړ کېدلو او ژوندي پاتې کېدلو څخه کفر او ايمان مراد وي، يعنې اوس څوک چې ايمان راوړي، او هغه چې په کفر همغسې ټينګ پاتې شي؛ د دواړو ايمان او کفر د حق له ښکاره کېدو څخه وروسته دی.

إِذْ يُرِيكَهُمُ اللَّهُ فِي مَنَامِكَ قَلِيلًا ۖ وَلَوْ أَرَاكَهُمْ كَثِيرًا لَّفَشِلْتُمْ وَلَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ سَلَّمَ ۗ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٤٣﴾

(ياد کړه) هغه وخت چې وښوول تاته دغه (کفار) الله په خوب ستا کې لږ، (چې اصحاب پرې خبر کړې، او دوی پرې ډاډه شي، او برابر پرې ورشي) او که ښوولي وی (الله) تاته (ای محمده!) دوی ډېر (او بيا وتلي وې اصحابو ته)؛ نو خامخا بې زړه شوي به وی تاسې (ای اصحابو)، او خامخا جګړې به مو کولې په کار کې (د جنګ چې ترې په څنګ شو يا ورسره جنګ وکړو) وليکن الله سلامت وساتلئ (تاسې له بې زړه توب او نزاع)، بېشکه دغه (الله) ښه عالم (دانا) دی پر هغو خبرو (هم) چې په زړونو کې دي.

تفسير: ﴿وَلَوْ أَرَاكَهُمْ كَثِيرًا﴾ «او که ښوولي وی الله تاته دغه (کفار) ډېر»، يعنې که تاسې دوی زيات ګڼلي وی، ځينو به د جنګېدلو همت کولو، او ځينو به نه کولو، او داسې اختلاف به واقع کېده، او په کار کې به خلل او بې انتظامي پيدا کېده، الله تعالى رسول الله مبارک صلى الله عليه وسلم ته په خوب کې لږ تعداد وروښود، او له وېرې او بې زړه توب څخه يې وژغورلئ (وساتلئ)، هغه ښه پوهيږي چې له کوم شي څنې په زړونو کې همت او شجاعت پيدا کيږي؟ او له کومې خبرې څنې بې زړه توب او وېره پيدا کيږي؟.

وَإِذْ يُرِيكُمُوهُمْ إِذِ الْتَقَيْتُمْ فِىٓ أَعْيُنِكُمْ قَلِيلًا وَيُقَلِّلُكُمْ فِىٓ أَعْيُنِهِمْ لِيَقْضِىَ اللَّهُ أَمْرًا كَانَ مَفْعُولًا ۗ وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٤٤﴾

او (ياد کړئ) کله چې وښوول تاسې ته (الله) هغه (دښمنان ستاسې) په هغه وخت کې چې سره مخامخ شوئ په سترګو ستاسې کې لږ، او لږ ښکاره کړئ تاسې (الله) په سترګو د دښمنانو کې لپاره د دې چې وکړي ته هغه کار چې وو مقرر کړی شوی (په ازلي علم د الله کې) چې وکړی شي (چې هغه نصرت د مؤمنانو او ذلت د کفارو دی)، او خاص الله ته بېرته ګرځولي شي ټول کارونه.

تفسير: رسول الله صلی الله عليه وسلم ته په خوب کې د کفارو شمېر تر نظر لږ راغلی وو، او مسلمانانو ته هم د مقابلې په وخت کې لږ ښکارېده، ځو په جرأت، زړورتيا، او مېړانې (بهادري) وجنګيږي، د رسول الله صلی الله عليه وسلم خوب نشي غلط کېدی، ځکه چې په دوی کې کافر پاتې کيدونکي سري ډېر لږ وو، زياتره هغه کسان وو چې وروسته بيا مسلمانان شول، او د خوب تعبير همداسې کېدی شي، چې د لږ تعداد څخه مراد د دوی د مغلوبيت اظهار وي، باقي د کفارو په نظر کې چې د مسلمانانو تعداد لږ ښکارېده؛ نو هغوی واقعا لږ وو، دا د هغه وخت واقعه ده، کله چې دواړه فوځونه سره مخامخ شول، بيا کله چې مسلمانانو په مېړانه (بهادرۍ) سره په حملو شروع وکړه، او د پرښتو د لښکر مرسته وررورسېده، په دغه وخت کې د مسلمانانو فوځ د کفارو په سترګو کې د دوی په نسبت يو په دوه ښکارېده: ﴿وَأُخْرَىٰ كَافِرَةٌ يَرَوْنَهُم مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ﴾ (۳ جزء د آل عمران سورت (۱۳) آيت (۲) رکوع).

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿٤٥﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) کله چې مخامخ شئ کوم فوځ (د دښمن) سره (چې جنګ درسره کوي) نو ثابت قدم اوسئ تاسې (او مه ترپې تښتئ)، او يادوئ الله ډېر (په خوله او زړه) ښايي چې تاسې په مراد ورسېږئ (په بري سره پر دښمن د ذکر په برکت).

تفسير: په دې کې لمونځ، دعا، تکبير او نور هر قسم ذکر الله شامل دي، د الله د ذکر تاثير دا دی، چې د ذاکر زړه ورباندې قوي او ډاډه کيږي، چې دغه ډاډګېرنې ته په جهاد کې له هر شي څخه زيات ضرورت شته، د اصحابو کرامو رضوان الله تعالی عليهم أجمعين له ګردو (ټولو) څخه لويه وسله همدغه ډاډينه وه: ﴿الَّذِينَ ءَامَنُوا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللَّهِ ۗ أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾ (۱۳ جزء د «الرعد» سورت (۴) رکوع (۲۸) آيت).

وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَلَا تَنَٰزَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ ۖ وَاصْبِرُوٓا ۚ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّٰبِرِينَ ﴿٤٦﴾

او حکم ومنئ تاسې د الله او د رسول د دغه (الله) او مه کوئ جګړه په خپلو منځونو (په کار د جهاد کې) پس بې زړه به شئ تاسې او لاړ به شي باد (د نصرت او قوت او د دولت) ستاسې، او صبر کوئ (په قتال او سختيو)، بېشکه الله له صابرانو سره دی (په جنګ کې په نصرت او حفاظت).

**تفسير:** په دغه آيت کې مسلمانانو ته ښوولي شوي دي، چې د بري کلې ګانې (چابيانې) کوم کوم شيان دي؟ يوائې په دولت، لښکر، جبه خانې، لوازمو او تجهيزاتو سره فتح، بری او نصرت نه حاصليږي، بلکه په ثابت قدمی، صبر، استقلال، قوت د زړه، ډاډ د الله تعالی په ياد او د رسول الله او د دوی د خليفه ګانو په اطاعت او فرمانبرداری، د يو له بل سره په اتفاق او اتحاد سره هم په لاس راځي، په دغه موقع کې مې زړه بې اختياره وغوښتل چې د أصحاب

کرامو رضي الله تعالی عنهم په نسبت د «ابن کثیر» څو الفاظ نقل کړم، چې د اخلاص او ایمان له انتهایي عمق څخه وتلي دي:

«وقد كان للصحابة رضي الله عنهم في باب الشجاعة والائتمار بما أمرهم الله ورسوله به وامتثال ما أرشدهم إليه ما لم يكن لأحد من الأمم والقرون قبلهم، ولا يكون لأحد ممن بعدهم، فإنهم ببركة صحبة الرسول صلى الله عليه وسلم وطاعته فيما أمرهم فتحوا القلوب والأقاليم شرقا وغربا في المدة اليسيرة مع قلة عددهم بالنسبة إلى جيوش سائر الأقاليم من الروم والفرس والترك والصقالبة والبربر والحبوش وأصناف السودان والقبط وطوائف بني آدم، قهروا الجميع حتى علت كلمة الله وظهر دينه على سائر الأديان، وامتدت الممالك الإسلامية في مشارق الأرض ومغاربها في أقل من ثلاثين سنة، فرضي الله عنهم وأرضاهم أجمعين، وحشرنا في زُمرتهم، إنه كريم تواب».

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِم بَطَرًا وَرِئَاءَ النَّاسِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٤٧﴾

او مه کېږئ (ای مؤمنانو) په شان د هغو کسانو چې راووتل له کورونو خپلو لپاره د فخر او ښودنې خلقو ته (شوکت، دبدبه خپله) او اړوي دوی (خلق) له لارې د الله څخه، او الله پر هغو کارونو چې کوي يې دوی محیط (چاپېر دی علم او قدرت د ده؛ نو جزا به پرې ورکړي).

تفسیر: ابو جهل سره له خپلو لښکرو او ډولونو او نغارو په ډېر شان او شوکت سره د بدر جنګ ته وتلی وو، چې مسلمانان وویرېږي، او د عربو په نورو قبائلو باندې هم د مشرکانو وېره او اثر ولوېږي، په لاره کې د ابو سفیان پیغام وروړسېد، چې «قافلې له سختې خطرې څخه نجات وموندہ او درغله، اوس تاسې هم د مکې په لوري بېرته ستانه شئ».

ابو جهل په بې انتهایي غرور سره وویل چې: «مونږ به هلته بېرته لاړ شو؛ چې د بدر پر چینو او رښو اوبو باندې ورسیږو، او هلته د طرب او نشاط مجالس منعقد کړو، سازندګانې او نغمې ویونکې ښځې د خوښي او برې سندرې ووايي، او په زړه پورې آتښونه پرې واچوو، شرابونه وڅښو، او ښه سیلونه او مزې وکړو، او تر درې شپو او ورځو پورې اوښان حلال کړو، او عربي قبائلو ته ښه میلمستیا ورکړو، او داسې ښې چرچې وکړو؛ چې دغه ورځ د عربو په منځ کې د همیشه لپاره یادګار پاتې وي، او په آینده کې د دغو لړو او کمزورو مسلمانانو حوصله بیخي ماته شي، چې بیا له سره څمونږ د مقابلې جرأت او زړورتوب ونشي کړی.

خو د هغه په ځای د نوحې او ماتم او ویر او ژړا صفونه او قطارونه له (بدره) تر مکې معظمې پورې وتړل شول، همغه مال چې دوی د تفاخر، تظاهر، او ښودنې لپاره لګولو؛ د مسلمانانو د غنیمت نوړی او لقمه شوه، د ایمان او توحید د دائمي غلبې د تاداو (بنیاد) تیږه (ګټه) د بدر په ډګر او میدان ودروله شوه، ګواکې په دې ډول سره په دغې وړو کې څمکې کې الله تعالی دټولې نړۍ د ګردو ملتونو او اقوامو د قسمتونو فیصله وفرمایله.

په هر حال په دغه آیت کې یې مسلمانانو ته خبر ورکړی، چې جهاد یواځې د وژلو او وینو تویولو د هنګامې نوم نه دی، بلکه عظیم الشأن عبادت دی، په عبادت کې هر څوک چې ریا یا ښودنې وکړي، نو هغه نه قبلیږي، لهذا تاسې په فخر، غرور، ښودنې او تظاهر کې کفارو پسې مه درومئ !.

وَإِذْ زَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ أَعْمَالَهُمْ وَقَالَ لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ مِنَ النَّاسِ وَإِنِّي جَارٌ لَّكُمْ فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتٰنِ نَكَصَ عَلٰى عَقِبَيْهِ وَقَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنْكُمْ إِنِّي أَرٰى مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّي أَخَافُ اللّٰهَ وَاللّٰهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿۴۸﴾

او (ياد كړئ ) هغه وخت چې ښايسته كړي وو دغو (كفارو) ته شيطان عملونه د دوی، او ويې ويل: چې نشته هيڅ غالب پر تاسې نن ورځ له خلقو، او بېشكه زه ساتونكی يم ستاسې، نو كله چې سره وليدل (مخامخ شول) دواړه فوځونه (د اسلام او كفر) بېرته يې منډې كړې په پوندو خپلو (يعني وتښتېده) او ويې ويل: بېشكه زه بېزار يمه له (ساتنې) ستاسې، او بېشكه زه وينم هغه (فوځ د ملائكو چې راځي په معاونت د مؤمنانو) چې نه يې وينئ تاسې، بېشكه زه ويرېږم له الله، او الله سخت دی عقوبت (د ده).

**تفسير:** قريش پر خپل جمعيت او قوت مغرور وو، ليكن د دوی په زړونو كې داسې يوه خطره پيدا شوې وه، نه چې «بني كنانه» څمونږ د دغه بري په لاره كې څه مشكلات پيدا كړي، دلته سمدلاسه شيطان د دوی د شا ټپولو او همت زياتولو لپاره د (كنانة) د لوی سردار «سراقة بن مالك» په صورت د خپلو ذرياتو له فوجه سره يو ځای ورښكاره شو، او ابو جهل او نورو مشركانو ته يې اطمينان وركړ، چې مونږ ګرد ستاسې د مرستې او حمايت لپاره راغلي يو، او د (كنانة) له طرفه بيخي بې غمه اوسئ، مونږ له تاسې سره يو.

كله چې په بدر كې د زور او قوت مسابقې شروع شوې، او د شيطان په نظر كې جبرئيل عليه السلام او نورې پرښتې راغللې، نو د ابو جهل له لاسه يې خپل لاس وكښه، او ژر په خپلو پوندو بېرته وګرځېد، او ابو جهل ور غږ كړې: «ای سراقه ! د جنګ او جګړې په دغه شدت كې په چل او فرېب سره چېرې تښتې؟ راځه بېرته راوګرځه او لښكر مه بې زړه كوه !»، سراقه وويل: «زه ستاسې سره نشم پاتې كېدی، زه هغه شيان وينم چې تاسې يې نه شئ ليدئ يعني (پرښتې) د الله تعالى، (يعني د دې حزب الله) له وېرې څخه مې زړه ريږدي (رپېږي) او اندامونه مې لړزيږي، اوس په ما كې د درېدلو قوت نشته، زه ډارېږم چې په كوم سخت عذاب او آفت كې اخته نشم».

«قتادة رحمه الله» وايي چې: دغه ملعون دروغ وويل، د ده په زړه كې د الله تعالى وېره نه وه، هو ! هغه پوهېده چې اوس د قريشو لښكرې د هلاكت په كنده كې لوېدلې دي، او هيڅ يو قوي دوی نشي ژغورلی (ساتلی)، دا د هغه قديمي عادت دی، چې خپلو پيروانو ته كړې لارې ښيي، او دوی وغولوي، كله چې هغوی د هلاكت په كنده كې وښويوي؛ نو دلته خپله پښه بېرته راكاږي، چې سم له هغه سره يې دلته هم داسې وكړل: ﴿يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطٰنُ إِلَّا غُرُورًا﴾ (۵ جزء د النساء سورت (۱۲۰) آيت (۱۸) ركوع)، ﴿كَمَثَلِ الشَّيْطٰنِ إِذْ قَالَ لِلْإِنْسَانِ اكْفُرْ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ مِّنْكَ إِنِّي أَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِينَ﴾ (۲۸ جزء د الحشر سورت (۱۶) آيت، (۲) ركوع)، ﴿وَقَالَ الشَّيْطٰنُ لَمَّا قُضِيَ الْأَمْرُ إِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمْ وَعْدَ الْحَقِّ وَوَعَدْتُّكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ إِلَّا أَنْ دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنْفُسَكُمْ مَا أَنَا بِمُصْرِخِكُمْ وَمَا أَنْتُمْ بِمُصْرِخِيَّ إِنِّي كَفَرْتُ بِمَا أَشْرَكْتُمُونِ مِنْ قَبْلُ إِنَّ الظّٰلِمِينَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ (۱۳ جزء د ابراهيم سورت (۲۲) آيت (۴) ركوع).

إِذْ يَقُولُ الْمُنٰفِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَّرَضٌ غَرَّ هٰؤُلَاءِ دِينُهُمْ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿۴۹﴾

(ياد كړئ !) هغه وخت چې ويل منافقانو (د مدينې) او هغو كسانو چې په زړونو د دوی كې مرض وو (د اعتقاد ضعف) چې: مغرور كړي دي دغو مؤمنانو لره دين د دوی (چې سره له

لړوالي او بې اسبابۍ پر ډېرو وسلو لرونکو ورځي، وفرمايل الله په ځواب د دوی کې): او هر څوک چې توکل وکړي په الله؛ نو (غالبيږي ځکه چې) بېشکه الله ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا دی (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ يَتَوَفَّى ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۙ ٱلْمَلَـٰٓئِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَـٰرَهُمْ وَذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلْحَرِيقِ ﴿٥٠﴾

او که ووينې (ای محمده !) هغه وخت چې قبض د روح کوي د هغو کسانو چې کافران شوي دي؛ پرښتې، په دې حال کې چې وهي به مخونه د دوی او شاګانې د دوی، او (وايي به ورته): وڅکئ تاسې عذاب د (اور) سوځوونکی (نو وبه ګورې يو له شرمه ډک حال).

تفسير: يعني پرښتې د ځنکدن د عذاب په وخت کې دوی ته وايي چې: اوس خو دغه درواخلئ او د جهنم د عذاب خوند به وروسته وڅکئ، ډېرو مفسرينو دا هم د بدر په واقعه کې داخل کړی دی، يعنې په هغه وخت کې هر هغه کافر چې وژل کېده، نو له هغه سره پرښتو همداسې معامله کوله، مګر د آيت الفاظ ګردو کفارو ته عام دي، نو ځکه دغه راجح معلوميږي چې دغه واقعه به په عالم برزخ کې وي، نو د دې تعلق به د بدر له واقعاتو سره داسې وي، چې په دنيا کې د دغو کفارو حال داسې شو، او په برزخ کې به داسې کيږي، نو د آخرت د عذاب په نسبت به څه وويل شي، چې هغه به څرنګه مدهش وي؟ !

ذَٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيكُمْ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَيْسَ بِظَلَّـٰمٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٥١﴾

دغه (تعذيب) په سبب د هغه (بد عمل) دی چې وړاندې لېږلی وو لاسونو ستاسې، او بېشکه الله نه دی هيڅ ظلم کوونکی په بندګانو خپلو (چې بې ګناه يې په عذاب کړي).

تفسير: دغه ګرد ستاسې د اعمالو نتيجه او سزا ده، که نه د الله تعالی له لوري د ظلم او تيري هيڅ يوه معامله کېدونکې نه ده، او «ظلاّم» يې ځکه وفرمايه، چې که «معاذ الله» د هغه د لوري د يوې ذرې سره په اندازه د ظلم امکان وي؛ نو هغه به د خپل عظمت د شان په لحاظ ظالم نه بلکه ظلاّم به وي، ځکه چې د کامل هر صفت هرومرو (خامخا) ښايي چې کامل وي، اوس الله تعالی د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم د تسلی لپاره فرمايي چې د قريشو حال ستا سره داسې دی:

كَدَأْبِ ءَالِ فِرْعَوْنَ ۙ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَفَرُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ فَأَخَذَهُمُ ٱللَّهُ بِذُنُوبِهِمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ قَوِىٌّ شَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ﴿٥٢﴾

لکه حال د تابعانو د فرعون (له موسی سره) او (لکه حال د) هغو کسانو چې وو پخوا له دوی نه (له انبياوو خپلو سره، هغه عادت دا وو) چې کافران شوي وو په آيتونو د الله؛ نو نيولي وو دوی لره الله په ګناهونو د دوی، بېشکه الله قوي (زورور) دی، ډېر سخت دی عذاب (د ده).

ذَٰلِكَ بِأَنَّ ٱللَّهَ لَمْ يَكُ مُغَيِّرًا نِّعْمَةً أَنْعَمَهَا عَلَىٰ قَوْمٍ حَتَّىٰ يُغَيِّرُوا۟ مَا بِأَنفُسِهِمْ ۙ وَأَنَّ ٱللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٥٣﴾

دغه (تعذيب) په سبب د دې دی؛ چې په تحقيق الله نه دی بدلوونکی د (هغه) نعمت چې انعام کړی يې وي پر يوه قوم باندې تر هغه پورې چې بدل (نه) کړي دوی هغه حال چې په نفسونو د دوی کې دی، او بېشکه الله ښه اورېدونکی (د ګردو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

**تفسير:** شاه صاحب ليكي: «تر هغه پورې چې نيت او اعتقاد بدل نشي، نو د الله تعالى ورعطا شوي نعمتونه بېرته نه اخيستل كيږي»، ګواكې له ﴿مَا بِأَنفُسِهِمْ﴾ څخه خاص نيت او اعتقاد مراد شوى دى، لكه چې له ترجمې څخه ظاهريږي، والله أعلم.

كَدَأْبِ آلِ فِرْعَوْنَ وَالَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ فَأَهْلَكْنَاهُم بِذُنُوبِهِمْ وَأَغْرَقْنَا آلَ فِرْعَوْنَ وَكُلٌّ كَانُوا ظَالِمِينَ ﴿۵۴﴾

(حال د دوى) لكه حال د تابعانو د فرعون دى (له الله سره) او (لكه حال) د هغو كسانو دى چې پخوا له دوى نه وو، (او هغه عادت دا وو) چې نسبت د دروغو يې كړى وو په آيتونو د رب خپل؛ نو هلاك كړل مونږ دوى په سبب د ګناهونو د دوى، او غرق (ډوب) كړل مونږ تابعان د فرعون، او (دوى) ټول وو ظالمان.

إِنَّ شَرَّ الدَّوَابِّ عِندَ اللَّهِ الَّذِينَ كَفَرُوا فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۵۵﴾ الَّذِينَ عَاهَدتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ ﴿۵۶﴾

بېشكه بدتر د خوځيدونكو (تلونكو) په نزد د الله هغه كسان دي، چې كافران شوي دي نو دوى ايمان نه راوړي. هغه كسان چې معاهده تړلې وه تا له دوى سره، بيا ماتوي دوى عهد خپل په هر كرت كې او دوى نه ويريږي (له دې عهد ماتولو څخه).

**تفسير:** هغو كسانو چې لكه ابو جهل - نضر - عتبه او كعب بن أشرف د تل لپاره كفر او بې ايماني غوره كړې، او له انجامه بالكل بې خوفه شوي دي، او هغه كسان چې (لكه بني قُريظه) په غدارۍ او بد عهدۍ سره معتاد شوي دي؛ دوى د الله تعالى په نزد ډېر بد حيوانان دي، د فرعون حال په بد عهدۍ او غدارۍ كې هم داسې وو: ﴿وَلَمَّا وَقَعَ عَلَيْهِمُ الرِّجْزُ قَالُوا يَا مُوسَى ادْعُ لَنَا رَبَّكَ بِمَا عَهِدَ عِندَكَ لَئِن كَشَفْتَ عَنَّا الرِّجْزَ لَنُؤْمِنَنَّ لَكَ وَلَنُرْسِلَنَّ مَعَكَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿۱۳۴﴾ فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُمُ الرِّجْزَ إِلَىٰ أَجَلٍ هُم بَالِغُوهُ إِذَا هُمْ يَنكُثُونَ﴾ (۹ جزء د الأعراف سورت (۱۳۴) آيت (۱۶) ركوع).

او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كې د «بني قُريظه» د يهودانو او د نورو هم دغه خصلت وو، چې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره به يې عهد كاوه، چې مونږ د مكې معظمې له مشركانو سره مرستې نه كوو، بيا به يې له دوى سره مرسته كوله، او ويل به يې: چې عهد مو په ياد نه وو، هر كرت به يې داسې كول، وروسته دا رابښيي چې له داسې غدارانو سره څرنګه ښايي چې معامله وكړى شي.

فَإِمَّا تَثْقَفَنَّهُمْ فِي الْحَرْبِ فَشَرِّدْ بِهِم مَّنْ خَلْفَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿۵۷﴾ وَإِمَّا تَخَافَنَّ مِن قَوْمٍ خِيَانَةً فَانبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَىٰ سَوَاءٍ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْخَائِنِينَ ﴿۵۸﴾

نو كه ومومې ته (اى محمده !) دوى په جنګ كې؛ پس تيت كړه (سزا وركړه) او وويروه په سبب د تيتولو (سزا وركولو) د دوى هغه كسان چې وروسته له دوى نه دي (د كافرانو محاربانو نه) لپاره د دې چې دغه وروستني خلق عبرت واخلي، او كه وېرېږې (اى محمده !) له كوم قوم (چې وعده يې كړېده له تاسره) د خيانت؛ نو وغورځوه دوى ته (دغه عهد) په (داسې ډول چې شئ تاسې او هغوى سره) برابر، بېشكه الله نه خوښوي خيانت كوونكي.

**تفسير:** يعني كه دغه خائنان او غداران معاهدان ښكاره معاهدې تر شا وغورځوي، او ستاسې په مقابل كې د جنګ ميدان ته راشي، نو دوى ته داسې سخته جزا وركړئ، او په قتل، جرح او نورو سره يې داسې وترهوئ؛ چې د هغې له

لیدلو څخه د دوی هغه بېرته وروسته پاتې شوي ملګري یا له دوی نه وروسته راتلونکي نسلونه هم عبرت واخلي، او د عهد ماتولو جرأت ونشي کړی.

که یوه قوم ښکاره خیانت ونه کړ، بلکه له آثارو او قرائنو څخه دا خبره څرګنده شوه، چې دوی عهد ماتولو ته تیار دي، نو تاسي ته هم اجازه شته، چې د مصلحت په تقدیر د دوی عهد بېرته ورکړئ، او د معاهدې د انتهاء اطلاع هغوی ته ورکړئ !، او بالمقابل له هغوی سره مناسبه رویه وکوئ، چې د دواړو ډلو په زړونو کې د پخوانیو معاهداتو په نسبت هیڅ یو شک او اشتباه پاتې نشي، او دواړه په مساویانه ډول سره خبردار، بیدار او هوښیار اوسي، او د خپلو ځانونو په تیارۍ او حفاظت کې مشغول اوسي، او ستاسې له جانبه څه غلا او خیانت ونشي، او ګردې معاملې سره ښکاره او صافې وي، الله تعالی خیانت اګر که له کفارو سره هم وي؛ نه خوښوي.

په سننو کې روایت دی چې امیر معاویه رضي الله تعالی عنه له «روم» سره میعادي معاهده درلوده (لرله)، د دغه میعاد په منځ کې امیر معاویه رضي الله تعالی عنه خپلو فوځونو ته د «روم» د سرحداتو په لوري د پرمختګ امر ورکړ، مقصد یې داسې وو چې اسلامي فوځ دې د رومیانو سرحداتو ته دومره نژدې او بالکل تیار اوسي، چې د معاهدې د نېټې د تېرېدلو سره متصل دوی پخپلو تعرضونو پیل (ابتداء) وکړي.

څه وخت چې دغه کار جاري وو، یو سپین ګیري په داسې حال چې په آس سور وو راغی، چې داسې یې وویل: «الله أکبر، الله أکبر، وفاءً لا غدراً»، یعنې عهد پوره کړئ، او عهد مه ماتوئ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «کله چې کوم قوم سره معاهده ولرئ، نو هیڅ یوه غوټه دې ونه پرانستله شي !، او نه دې وتړله شي، تر هغه پورې چې د معاهدې نېټه پوره شي، یا مقابلې ډلې ته په مساویانه حیثیت سره معاهده ورمسترده شي !».

کله چې معاویه رضي الله تعالی عنه ته دغه خبر ورسېد؛ نو ژر له خپله فکره بېرته وګرځېد، او چې ویې لید، هغه سپین ګیری عمرو بن عنبسه رضي الله تعالی عنه وو.

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَبَقُوا إِنَّهُمْ لَا يُعْجِزُونَ ﴿٥٩﴾

او نه دې کوي ګمان هغه کسان چې کافران شوي دي؛ چې دوی به وتښتي (له عذابه او خلاص به شي) ! بېشکه دوی له سره نشي مغلوبولی (الله له تعذیب خپل).

وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنتُمْ لَا تُظْلَمُونَ ﴿٦٠﴾

او تیاروئ (ای مؤمنانو !) لپاره (د جنګ) د دغو (ماتوونکو د عهد یا د مطلق کفارو) څومره چې توانېږئ (جمع کولی شئ) تاسې له قوت (اسباب د جنګ) او له روزل شوو ساتل شوو آسونو (لپاره د جهاد) چې ویروئ تاسې په دغه (قوت او تیارۍ) سره دښمنان د الله او دښمنان ستاسې او نور کسان بې له دوی نه چې نه پېژنئ تاسې هغوی، الله عالم دی په (عداوت د) هغوی، او هر هغه څه چې نفقه کوئ (لګوئ) تاسې له یوه شي په لاره د الله کې (لپاره د ترقی د دین)؛ پوره (بدل د هغه) به درکړ شي تاسې ته حال دا چې پر تاسې به ظلم ونه کړی شي (د ثواب په لږوالي او د عذاب په ډېر والي).

تفسير: په الله تعالی داعتماد او توکل کولو معنی دا نه ده؛ چې ضروري او مشروع اسباب دې ترک کړی شي، ځکه چې په مسلمانانو فرض دي، تر هغه پورې چې قدرت لري؛ د جهاد سامان او لوازم دې تیاروي، د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مبارک عهد کې د آسونو سورلی، توره وهل، غشي ویشتل او نور جنګي مشقونه د جهاد له لوازمو څخه وو.

نن ټوپک، مشین ګن، توپ، ټینک، راکټ، زره پوښ او نوري ارابې، الوتکې، جنګي انګوټ، کروزر، تحت البحري، اوبتل او نور جنګي مهمات او لوازم، تجهیزات تیارول او لرل، او په استعمال اچول اوچلول، او د حربي او عصري فنونو زده کول بلکه ورزش او د دوی په شان نور عملیات کول، د جهاد سامان او لوازم دي.

همداسې هغه نورې وسلې او د حرب او ضرب ګرد آلات او اسباب چې وروسته له دې نه ایجاد او اختراع کیږي؛ غه ټول د دې آیت په منشأ کې داخل دي.

باقي د آسونو په نسبت خو رسول الله مبارک پخپله فرمایلي دي: «الخیل معقودٌ في نواصیها الخیر إلی یوم القیامة»، «د آسونو په تندي کې خیر اېښود شوی دی تر قیامته پورې»، په احادیثو کې راغلي دي، چې هر هغه چې آس د جهاد په نیت روزي او ساتي يې؛ د ده په خوړلو، او څښلو بلکه په هر قدم پورته کولو باندې اجر وررسیږي، او د ده تر خوړو او نورو پورې به هم د قیامت په ورځ په تله (میزان) کې تللی کیږي».

یعني دغه ګرد (ټول) سامان، لوازم، تجهیزات او تیاری پر دښمنانو باندې د وېرې، خوف او دهشت اچولو لپاره یو ظاهري سبب دی، باقي د فتحې او ظفر او برې اصلي سبب خو د الله تعالی مرسته ده، چې د هغې بیان پخوا له دی نه شوی دی، او هغه خلق چې تاسې يې بالتعیین نه پېژنئ؛ منافقان دي چې د مسلمانی په جامه کې يې ځانونه پټ کړي وو، یا د (بني قریظه) یهودان یا د روم او فارس یا نور هغه اقوام دي، چې له هغو سره وروسته له دې نه ستاسې مقابله واقع کېدونکې ده.

﴿وَمَا تُنفِقُوا مِن شَيْءٍ﴾ الآیة ـ دغه د مالي جهاد په طرف اشاره ده، یعنې د جهاد په تیاري کې هغومره مال چې تاسې لګوئ؛ د هغه پوره بدل او معاوضه به ومومئ، د یوه درهم په مقابل کې اوه سوه درهم، ﴿وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَن يَشَاءُ﴾ د بر ځلې په دنیا کې هم د هغه معاوضه بلکه له هغه څخه لا زیات اجر هم درکول کیږي.

﴿وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ ﴿٦١﴾

او که میلان وکړي کفار صلحې (روغې) ته؛ نو ته هم میلان وکړه دې (صلحې) ته، او توکل (اعتماد) وکړه په الله (او مه ویرېږه له مکره د دوی)، بېشکه چې دغه (الله) هم دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم (دانا پر ګردو احوالو).

تفسیر: له جهاد څخه وینې تویول نه، بلکه د کلمة الله اعلاء او د فتنې دفع مقصود دی، که دغه عالي مقصد بې د وینې له تویولو څخه حاصل شي، نو خامخا د وینو تویولو لپاره هیڅ حاجت نه پاتې کیږي، که داسې کوم احتمال وي، چې شاید کفار د صلحې په پرده کې غواړي چې مونږ تېر باسي؛ نو هیڅ پروا مه کوئ، او پر الله تعالی باندې توکل او اعتماد وکړئ، پاک الله د دوی له نیاتو څخه ښه خبردار دی، او د دوی پټې مشورې اوري، د الله تعالی دحمایت په مقابل کې د هیچا بدنیتي چلېدی نشي، تاسې خپل نیت صاف وساتئ!.

﴿وَإِن يُرِيدُوا أَن يَخْدَعُوكَ فَإِنَّ حَسْبَكَ اللَّهُ ۚ هُوَ الَّذِي أَيَّدَكَ بِنَصْرِهِ وَبِالْمُؤْمِنِينَ﴾ ﴿٦٢﴾

او که اراده وکړي دوی دغه چې فرېب درکړي تاته (په دغه روغه کې)؛ نو بېشکه کافي دی تا ته الله، هم دی هغه ذات دی چې قوت يې درکړی دی تاته په مرستې (مدد) خپلې سره (په لېږلو د پرښتو په بدر کې) او په مؤمنانو سره.

تفسیر: که وروسته له روغې څخه دغه خلق د خیانت او د عهد د ماتولو اراده وکړي، نو تاسې مه خواشیني (خفه) کېږئ، د الله تعالی مرسته (مدد) تاسې ته کافي ده، د دوی هغه ګرد مکرونه او فرېبونه به الله جل جلاله شنډ کړي، همغه الله جل جلاله تاته په «بدر» کې غیبي امداد درکړ، او په ظاهري ډول سره یې د ځان جاروونکو او سربښندونکو مسلمانانو په مټ ستاسې تایید وفرمایه.

وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ ۚ لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ۚ إِنَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٦٣﴾

او الفت محبت یې واچاوه په منځ د زړونو د دغو (مؤمنانو) کې ! که لګولی وی تا هر هغه څه چې په ځمکه کې دي ټول؛ نو نه به دې شو اچولی الفت محبت په منځ د زړونو د دوی کې، ولیکن الله الفت محبت واچولو په منځ د (زړونو د) دوی کې، بېشکه چې دغه (الله) ښه غالب (قوي د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا دی (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: له اسلام څخه پخوا په عربو کې د جدال، قتال، نفاق او شقاق بازار تود وو، په خوشې چتې (بېکاره) خبرو باندې د قبائلو په منځ کې تصادمات او جنګونه کېدل، کله چې به د دوه ډلو په منځ کې جنګ شروع کېدو، نو تر څو پېړیو پورې به د هغه اور نه مړ کېده.

د مدینې منورې د دوو زبردستو قبیلو (اوس) او (خزرج) د ګونډي جنګونو او د پخواني عداوت او بغض سلسله هیڅکله سر ته نه رسېده، یو به د بل وینو ته تږی وو، او هر یوه به د خپل عزت او پت وږی وو، په دغو حالاتو کې ځمونږ پاک رسول محمد صلی الله علیه وسلم د توحېد او معرفت او اتحاد او اخوت عالم شمول پیغام سره مبعوث شو، الله تعالی د حقیقي ورونو څخه زیات د یو مینه او الفت د بل په زړه کې واچاوه، او بیا د دغو ګردو (ټولو) الفتونو اجتماعي مرکز د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ذات یې وګرځاوه، د دوی زړونه داسې یو وار سره اړول د الله تعالی د قدرت او قوت یوه کرشمه وه، او د شدید ضرورت په داسې یوه وقت کې، دوی ګرد (ټول) د محبت او الفت په یوې نقطې کې سره ټولول؛ د ده د کامله حکمت دلیل دی.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَسْبُكَ اللَّهُ وَمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٦٤﴾

ای نبي ! کافي (بس) دی تاته الله او هغه چاته چې متابعت کوي ستا له مؤمنانو څخه.

تفسیر: د دې آیت مطلب دا دی چې: «ای نبي صلی الله علیه وسلم ! الله تعالی تاته او ستا ملګرو ته کافي دی»، یعنې د عدد او د سرېو او مال او تجهیزاتو له قلّت څخه وېره نه ده پکار.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ ۚ إِن يَكُن مِّنكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ ۚ وَإِن يَكُن مِّنكُم مِّائَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿٦٥﴾

ای نبي ! تېز کړه (او ترغیب ورکړه) مؤمنانو ته پر جنګ (د کفارو)، که وو له تاسې ځنې شل تنه صابران (ثابت قدمان)؛ نو غلبه دې وکړي پر دوو سوو کافرانو (یعنې داسې جنګ دې وکړي چې نتیجه یې فتح او غلبه کېدی شي)، او که وو له تاسې ځنې سل تنه (صابران ثابت قدمان)؛ نو غالب دې شي پر زرو تنو له هغو کسانو چې کافران شوي دي په سبب د دې چې بېشکه دوی (داسې) قوم دی چې نه پوهېږي (یعنې جاهلان دي په الله او قیامت).

تفسير: الله تعالی په دغه آیت سره مسلمانانو ته د جهاد په لوري ترغیب ورکوي، چې که لږ یئ هم مه بې زړه کېږئ ! د الله تعالی په فضل او مرحمت سره تاسې پر لس چندو دښمنانو باندې هم غالبېدئ شئ، سبب یې دا دی چې مسلمانان د الله تعالی لپاره جنګیږي، او دوی الله تعالی پېژني او یقین پرې لري، او د ده د مرضی متابعت کوي، نو ځکه په ډېر زړورتوب اومېړانې (بهادرۍ) سره جنګیږي، هر کله چې کافران پر دغه حقیقت نه دي معتقد، نو ځکه تش د حقیرو او فاني اغراضو لپاره د حیواناتو په شان جنګیږي، او د دغه قلبي قوت او غیبي امداد څخه محروم پاتې کیږي، بناء علیه د خبر او زیري په ډول حکم راکړی شوی دی؛ چې مؤمنانو ته ښایي، چې د لس چندو دښمنانو په مقابل کې په ډېر صبر او استقامت سره وجنګیږي، که مسلمانان شل تنه وي، ښایي چې د دوو سوو کفارو له مقابلې څخه مخ ونه ګرځوي، که سل تنه وي، نو زرو تنو ته دې خپلې شاوې ونه ګرځوي.

اَلْـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْكُمْ وَعَلِمَ اَنَّ فِيْكُمْ ضَعْفًا ۚ فَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ مِّائَةٌ صَابِرَةٌ يَّغْلِبُوْا مِائَتَيْنِ ۚ وَاِنْ يَّكُنْ مِّنْكُمْ اَلْفٌ يَّغْلِبُوْٓا اَلْفَيْنِ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿٦٦﴾

اوس آسانتیا وکړه الله په تاسې (او تېر شو له سختۍ) او معلومه یې کړه چې بېشکه په تاسې کې سستي ده، نو که وو له تاسې څخې سل تنه صابران (ثابت قدمان)؛ نو غالب دې شي پر دوو سوو (کافرانو یعني داسې جنګ دې وکړي چې نتیجه یې فتح او غلبه کېدی شي)، او که وو له تاسې څخې زر تنه غالب دې شي په دوو زرو (کفارو) په حکم د الله سره، او الله ملګری دی له صابرانو (ثابت قدمانو سره په نصرت، حفاظت او اثابت).

تفسیر: په بخاري شریف کې له ابن عباس رضي الله تعالی عنه څخه روایت دی، «په دغه تېر آیت کې چې مسلمانانو ته د لس چندو کفارو په مقابل کې د ثابت قدمۍ امر ورکړی شوی وو، هر کله چې پر خلقو دغه حکم دروند شو، نو وروسته له هغه دغه بل آیت نازل شو: ﴿اَلْـٰٔنَ خَفَّفَ اللّٰهُ﴾ الآیة - یعني الله تعالی ستاسې د کمزورۍ او سستۍ له معلومولو څخه وروسته هغه حکم لږ کړ، اوس یواځې د خپل دوچند تعداد په مقابل کې ثابت قدم اوسېدل ضروري، او ترې تښتېدل حرام دي.

همدغه حکم تر اوسه باقي دی، لیکن که له دوو څخې پر زیاتو حمله وکړي؛ لوی اجر لري، د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په وخت کې یو زر تنه مسلمانان له اتیا زرو سره جنګیدلي دي، د «مؤته» په غزا کې درې زره مسلمانان د دوو لکو کفّارو په مقابل کې ټینګ ولاړ وو، له داسې واقعاتو څخه لله الحمد اسلامي تاریخ ډک دی.

مَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّكُوْنَ لَهٗٓ اَسْرٰى حَتّٰى يُثْخِنَ فِى الْاَرْضِ ۗ تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا ۖ وَاللّٰهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٦٧﴾

نه ښایي نبي لره دا چې وي ده لره بندیان (چې ترې فدیه واخلي) تر هغه وخته چې قوي شي په ځمکه کې (د کفارو د ډېر قتل او جرحې په سبب)، اراده کوئ تاسې (ای مؤمنانو) اسباب د دنیا (په اخیستلو د فدیې سره) او الله اراده لري (تاسې لره ثواب) د آخرت (د کفارو د قتل په سبب)، او الله ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا دی، چې هر کار په تدبیر اومصلحت سره کوي.

تفسیر: د بدر په غزا کې اویا تنه کافران د مسلمانانو په لاس بندیان شول، د الله تعالی له لوري د دوی په نسبت دوه صورتونه د مسلمانانو په مخکې وړاندې شول، (١): وژل، (٢) ترې فدیه اخیستل، او خوشې کول، په هر حال رسول الله مبارك په دغې معاملې کې له اصحابو څخې رایه وغوښته.

ابو بکر صدیق رضي الله تعالی عنه وویل: «یا رسول الله ! دغه ګرد (ټول) بندیان مو خپلوان او ورونه دي، بهتره دا ده چې له هغو څخه فدیه واخلو، او خوشې یې کړو، چې بېرته لاړ شي، د دغه نرم سلوک او احسان څخه وروسته ممکن دي، چې څه خلق له دوی څنې مسلمانان او هغوی له خپلو اولادونو او اتباعو سره څمونږ لاس او مټ وګرځي، او هغه مال چې د دوی له لوري بالفعل څمونږ په لاس راشي، په هغه به مونږ جهاد او نور دیني کارونه او لازمې چارې په مخ بوځو.

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم میلان هم د فطرې زړه سوی، شفقت، او «صلة الرحم» په بناء د همدې رایې په لوري وو، بلکه د اصحابو کرامو عمومي رایه هم په همدې جانب وه، زیاتره اصحاب د ابو بکر الصدیق رضي الله عنه له دې بیان سره متفق وو.

عمر او سعد بن معاذ رضي الله عنهما له دغو آراوو سره اختلاف وکړ، عمر رضي الله تعالی عنه وویل: «یا رسول الله ! دغه بندیان د کافرانو امامان او د مشرکینو مشران او لویان دي، دوی ټول دې ووژل شي، نو د کفر او شرک سر به مات شي، او پر ګردو (ټولو) مشرکانو به هیبت ولوېږي، او وروسته له دې نه به د مسلمانانو د ربړولو (تکلیفولو) او د الله تعالی له لارې څنې د خلقو ګرځولو جرأت په دوی کې پاتې نشي، او د الله تعالی په دربار کې به له مشرکانو سره څمونږ انتهایي نفرت، بغض، او کامله بېزاري ښکاره شي، چې مونږ د الله تعالی په لاره او د حق په معامله کې د خپلو دخپلوۍ او قرابت او د مالي فوائدو او د هیڅ شيز هیڅ پروا هم ونه کړه، نو څکه مناسب ده، چې په دغو بندیانو کې هر هغه چې له مونږ څنې د کوم یوه عزیز او قریب وي؛ هغه دې همغه خپل قریب محبوس په خپل لاس ووژني».

لنډا دا چې له بحث او غور نه وروسته د ابو بکر الصدیق رضي الله عنه پر مشورې باندې عمل وشو، څکه چې د آراوو کثرت د هغه د رایې په لوري وو، او پخپله رسول کریم صلی الله علیه وسلم هم د خپل طبیعي رأفت او رحمت په بناء د ابو بکر الصدیق رضي الله تعالی عنه د خبرې لوري ته مائل وو، خو دغه رایه د الله تعالی په دربار کې غوره نه شوه په ﴿مَا كَانَ لِنَبِيٍّ أَن يَكُونَ لَهُ أَسْرَىٰ حَتَّىٰ يُثْخِنَ فِي الْأَرْضِ﴾ کې د دې نه غوروالي په لوري اشاره ده، نو څکه په دغو آیتونو کې سخته عتاب آمیزه لهجه اختیار کړی شوې ده.

لَّوْلَا كِتَابٌ مِّنَ اللَّهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيمَا أَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٦٨﴾

که نه وی ازلي حکم له جانبه د الله چې ړومبی لیکل شوی دی (په لوح محفوظ کې) نو خامخا رسېدلی به وو تاسې ته په عوض د) هغې (فدیې) کې چې اخیستې ده تاسې؛ عذاب ډېر لوی.

تفسیر: یعنې دغه غلطي په خپل ذات کې داسې وه؛ چې هغوی دنیوي مال او متاع په نظر کې نیولی وو داسې مشوره یې ورکړې وه، نو لازمه وه چې سخته سزا ورکړی شوي وی، خو لومړی د سزا مانع هغه دی چې پاک الله جل جلاله بیان کړی دی، او دغه لاندني شیان هم کېدی شي، چې د سزا مانع وګرځي:

(۱): په مجتهد باندې به په داقسم اجتهادي غلطی او خطا کې څه عذاب نه وي.

(۲): تر هغه پورې چې الله تعالی په کوم شي باندې ښکاره امر او یا له هغه شي څخه ښکاره منع ونه کړي؛ د هغه مرتکب به نه عذابوي.

(۳): د أهل البدر ګردې خطاوې یې ورمعافې کړې دي.

(۴): کومه رویه چې په غلطی سره پخوا له وخته اختیار کړی شوې ده؛ یعنې په فدیه سره د بندیانو خوشې کول د الله تعالی په علم کې فیصله شوې وه، چې وروسته له هغه به د دې اجازه ورکوي: ﴿فَإِمَّا مَنًّا بَعْدُ وَإِمَّا فِدَاءً﴾ (۲۶ جزء د محمد صلی الله علیه وسلم سورت اوله رکوع (۴) آیت).

(۵): دغه هم فیصله شوې وه، تر هغه پورې چې رسول علیه السلام په دې کې موجود وي، یا خلق د زړه له صدقه استغفار وایي؛ نو عذاب به پرې نه راځي.

(۶): له دغو بندیانو څنې د ډېرو په قسمت کې مسلمانېدل لیکل شوي وو، الغرض که داسې موانع نه وی؛ نو دغه غلطي دومره لویه او سخته وه، چې ښایي پرې ډېر سخت عذاب نازل شوی وی.

فَكُلُوا مِمَّا غَنِمْتُمْ حَلَالًا طَيِّبًا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۶۹﴾

نو خورئ تاسې له هغه ماله چې غنیمت اخیستی دی تاسې حلال طیب (پاکیزه)، او وویرېږئ له الله، بېشکه الله بخښونکی د (خطیّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: له ړومبني عتاب او تهدید څخه مسلمانان دومره وویرېدل چې ویې ویل: «ښایي د غنیمت په اموالو کې چې د بندیانو فدیه هم په کې شامله ده؛ لاس ونه وهل شي»، نو په دغه آیت کې یې تسلي وفرمایله، چې هغه د پاک الله عطا ده، په خوښی سره یې وخورئ، هو! په جهاد کې غنیمت او نورو شیانو ته دومره اهمیت ورکول یا یې دومره په نظر کې نیول نه دي پکار؛ چې له عالي مقاصدو او کلي مصالحو څخه سترګې پټې شي، بېشکه دمؤقتي حالاتو او مصالحو په اعتبار له تاسې څنې یوه غلطي وشوه، مګر پخپله په مال کې څه خبیث او پلیتي نشته، نو د الله تعالی څخه وویرېږئ، او له مخالفت نه یې ځانونه وژغورئ، هغه به په خپل مرحمت سره ستاسې غلطی درمعافوي.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّمَن فِي أَيْدِيكُم مِّنَ الْأَسْرَىٰ إِن يَعْلَمِ اللَّهُ فِي قُلُوبِكُمْ خَيْرًا يُؤْتِكُمْ خَيْرًا مِّمَّا أُخِذَ مِنكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۷۰﴾ وَإِن يُرِيدُوا خِيَانَتَكَ فَقَدْ خَانُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ فَأَمْكَنَ مِنْهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿۷۱﴾

ای نبي! ووایه ته هغه چا ته چې په لاسونو ستاسې کې دي له بندیانو (قیدیانو): که معلوم کړي الله په زړونو ستاسې کې کوم خیر (ایمان) نو در به کړي تاسې ته خیر (بهتر، غوره) له هغه (مال) څخه چې اخیستی شوی دی له تاسې نه، او مغفرت به وکړي تاسې ته، او الله ښه بخښونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی. او که اراده وکړي دغه (بندیان) د خیانت ستاسې (په ظاهري اسلام سره)؛ نو په تحقیق خیانت کړی وو دوی له الله سره پخوا له دې نه (په کفر او د عهد په ماتولو سره)؛ نو قادر کړې (ته الله) پر دوی (په قتل، حبس او بندي کولو د دوی سره)، او الله ښه عالم دانا (په ټولو احوالو) ښه حکمت والا دی.

تفسیر: او که اراده لري هغه بندیان چې اسلام یې راوړی دی، د دې چې له تا سره خیانت وکړي، او بېرته مرتد شي، یا هغه فدیه درنه کړي؛ چې دوی یې ضامنان شوي دي، پس په تحقیق خیانت کړی وو دوی له الله سره پخوا له دې په کفر سره.

پخوا چې مو له الله تعالی سره کومه ټېګي کړې وه، یعنې د ﴿أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ﴾ فطري عهد په خلاف مو کفر او شرک اختیار کړی وو، یا څینو «بني هاشمو» چې د ابو طالب په حیات کې عهد کړی وو، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حمایت کې به متفق وي، او اوس له کفارو سره ملا تړلي راغلي دي، او د هغه انجام یې په خپلو سترګو سره ولید، چې نن په څه ډول د مسلمانانو په قید او واک کې دي، وروسته له دې نه هم د ټګۍ همداسې سزا ورکوله کیږي، له الله تعالی څخه خپلې پټې خبرې او نیتونه نشئ پټولئ، او نه د هغه د حکیمانه وو انتظاماتو مخه نیولئ شئ.

شاه صاحب ليکي: «د الله تعالی وعده پوره شوه، له دوی ځنې هغه کسان چې مسلمانان شول؛ الله تعالی هغوی ته بېشماره دولتونه ورعطا کړل، او هغه چې مسلمانان نشول؛ خراب او تباه شول».

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يُهَاجِرُوا مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا ۚ وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿٧٢﴾

بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې کړی او جهاد يې کړی دی په مالونو خپلو سره، او په نفسونو خپلو سره په لاره د الله کې (د دين د ترقی لپاره)؛ او هغه کسان چې ځای يې ورکړی دی (مهاجرينو ته) او مددګاري يې کړې ده (له دوی سره)؛ دغه کسان ځينې د دوی دوستان دي د ځينو نورو (په نصرت او ارث)، او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی، او هجرت يې نه دی کړی؛ نشته تاسې ته له ولايت (نصرت او ارث) د دوی ځنې هيڅ شی، تر هغه پورې چې هجرت وکړي، او که طلب د نصرت (او مرستې ـ مدد) وکړي دغه (غير مهاجر مؤمنان د کفارو په جنګ کې) له تاسې ځنې په دين کې؛ نو لازمه ده په تاسې مرسته (مدد) کول (له دوی سره په دين کې) مګر (نه دی لازم ستاسې نصرت او ورتګ) پر هغه قوم باندې چې په منځ ستاسې او په منځ د دوی کې معاهده وي، او الله په هغه کار چې کوئ (يې) تاسې ښه ليدونکی دی.

تفسير: په دغو بنديانو (قيديانو) کې ځينې داسې کسان هم وو، چې په زړه کې مسلمانان وو، خو له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره يې هجرت نه ووکړی، او په زور او بې له خپلې خوښې له کفارو سره بدر ته راغلي وو، په دغه آيت کې دا راښوولي شوي دي، چې د داسې مسلمانانو حکم څه دی؟.

شاه صاحب ليکي چې: «د رسول الله صلی الله عليه وآله وصحبه وسلم اصحاب دوه فرقې وې، مهاجرين (کور او کهول پرېښودونکي) او انصار (ځای ورکوونکي) (مرسته ـ مدد کوونکي)، په دغو دواړو فرقو کې رسول الله مبارک مؤاخات (وروروليّ) قائمه کړې وه.

د آيت مضمون داسې شو: «څومره مسلمانان چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره حاضر دي، د دوی ګردو (ټولو) صلحه او جنګ سره يو دی، د يوه موافقت د ګردو (ټولو) موافقت، او د يوه مخالفت د ګردو (ټولو) مخالفت دی.

بلکه د هجرت په ابتداء کې د مؤاخاتو د سلسلې په لحاظ يوه له بل څخه ميراث هم وووړ، او هغه مسلمان چې په خپل هغه ملک کې اوسيږي، چې هلته د کفارو زور او تسلّط وي، يعنې له دار الحرب يې هجرت نه وي کړی، د هغو په صلحه او جنګ کې د دار الاسلام اوسېدونکي مسلمانان (مهاجرين او انصار) نه شريک کيږي، که د دار الحرب مسلمانان صلحه يا معاهده د کفارو له کوم جماعت سره وکړي، نو د دار الاسلام حر او آزاد مسلمانان د هغې معاهدې تعميل نشي کولی، بلکه له هغوی سره د مصلحت له مخې لا جنګ هم کولی شي.

هو ! دغه ضروري ده، که د دار الحرب مسلمانان په ديني معاملاتو کې له آزادو مسلمانانو څخه مرسته (مدد) وغواړي؛ نو له دوی سره حسب المقدور مرسته (مدد) کول پکار دي، مګر له هغه جماعت سره چې د دغو آزادو مسلمانانو معاهده شوې ده؛ د هغو په مقابل کې د معاهدې تر ادامې پورې د دار الحرب له مسلمانانو سره امداد نشي

كولي، او هم پخپلو منځونو کې میراث په هغه سلسله کې چې مهاجرينو او انصارو سره قائمه کړې وه؛ د دار الحرب مسلمانان نه وو شامل.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُن فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ ﴿٧٣﴾

او هغه کسان چې کافران شوي دي؛ ځيني د دوی دوستان دي د ځينو نورو (په امداد کې له يو له بله سره)، که ونه وکړئ تاسې دا (دوستي په خپلو منځونو او دښمني له کفارو سره) نو پیدا به شي (لويه) فتنه په ځمکه کې او (خور به شي) فساد.

تفسير: يعنې د کافر او مسلمان تر منځ حقيقي دوستي او رفاقت نشته، او نه هم يو د بل وارث کېدی شي، هو ! کافر دبل کافر رفيق او وارث کېدی شي، د دوی په مقابل کې يو مسلمان د بل مسلمان دوست، او رفيق دی، او يو له بل څخه ميراث وړلی شي، نو مسلمانان بايد خپلې دوستۍ او رفاقتونه مؤمنانو پورې ځانګړې کړي، او له کفارو دې خپلې دوستۍ وشکوي، او ترې جدا دې شي، او که داسې ونشي نو د مسلمانانو تر منځ به فتنه واقع شي، او ډېر لوی فساد به خور شي، په ټولنه کې به ګډوډي جوړه شي، او د مسلمان او کافر تر منځ به فرق نه کېږي، د مسلمانانو تر منځ يو پر بل حقوق به ضايع شي، او له کافر څخه نفرت به له زړونو ووځي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ آوَوا وَّنَصَرُوا أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٧٤﴾

او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې کړی دی او جهاد يې کړی دی په لاره د الله کې، او هغه کسان چې ځای يې ورکړی دی (مهاجرينو ته) او مددګاري يې کړې ده (له رسول الله او مهاجرينو سره) دغه موصوف په دغو صفاتو سره هم دوی دي مؤمنان په حقه (رښتيا) سره، دوی لره دی مغفرت (بخښنه) او رزق (روزي) نېکه (د عزت چې جنت دی).

وَالَّذِينَ آمَنُوا مِن بَعْدُ وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا مَعَكُمْ فَأُولَٰئِكَ مِنكُمْ ۚ وَأُولُو الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ فِي كِتَابِ اللَّهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٧٥﴾

او هغه کسان چې ايمان يې راووړ وروسته (له دغه لومړني هجرت څخه) او هجرت يې وکړ او جهاد يې وکړ په ملګريتوب ستاسې؛ نو دغه (ستايل شوي په دغو صفاتو) له تاسې څخه دي، او خاوندان د خپلوۍ ځيني د دوی غوره دي (د ميراث په وړلو سره) په ځينو نورو په حکم د الله کې، بېشکه الله پر هر شي باندې ښه عالم دی (او همده ته معلوم دي چې د هر يوه څومره حق دی؛ نو د الله هر حکم پر علم او حکمت بنا دی).

تفسير: يعنې که څوک په مؤمنانو او مهاجرينو کې وروسته هم شامليږي، او هغه واجبات چې پخواني مؤمنان يې اداء کوي، دوی يې هم اداء کوي؛ نو د دوی ايمان او هجرت او نور صالح اعمال قبول دي، د مؤمنانو ورونه دي، او د هغوی د دوستۍ، رفاقت او مرستې مستحق دي، لکه چې حديث شريف کې راغلي دي چې: «المرء مع من أحب» «د هر انسان حشر به د هغه چا سره کيږي، او د هغه چا سره به په آخرت کې هم وي، چې په دنيا کې ورسره مينه او محبت لري»، دا آيت د هغه حکم ناسخ هم دی؛ چې د اخوت او ورورولی له کبله به يې يو له بله سره ميراث وړلو.

تمت سورة الأنفال بفضل الله.

# سُورَةُ التَّوبَة

«د (التوبة) سورت مدني دی، پرته (علاوه) له دوو وروستنیو آیتونو څخه چې «مکي» دي
(۱۲۹) آیتونه او (۱۶) رکوع لري په تلاوت کې (۹) او په نزول کې (۱۱۳) سورت دی، د (المائدة) له سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

د (الأنفال) سورت د هجرت په اوائل کې او دا (د التوبة یا د براءة) سورت د هجرت په اواخرو کې نازل شوی دی، د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دا عادت وو؛ چې د هر قرآني آیت په نسبت چې نازلېده داسې به یې فرمایل چې: «دغه آیت دې د هغه سورت په هغه موقع کې کېښود شي !»، د دغو آیتونو په نسبت چې اوس د «التوبة» سورت یا د «براءة» سورت ورته ویلی شي، رسول الله مبارک څه تصریح ونه فرمایله، چې په کوم سورت کې دې درج شي، له دې نه ظاهرېږي چې دغه مستقل سورت دی، او د بل کوم سورت جزء نه دی.

لېکن عمومي قاعده داسې وه، کله چې به کوم نوی سورت نازلېده، نو له پخواني سورت څخه د جلا (جدا) کېدلو لپاره ﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ به هم راتله، د «التوبة» د سورت په شروع کې ﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ رانغله، ځو مشعر وي چې دغه بېل سورت نه دی نظر په دغو وجوهو په عثماني مصاحفو کې د دغه سورت په شروع کې ﴿بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ﴾ نه ده لېکلې شوې.

لېکن په کتابت کې د ده او د «انفال» په منځ کې فصل کړی شوی دی، چې نه په پوره ډول سره د هغه استقلال ښکاره شي، او نه یې له بل سورت جزویت ثابت وي، باقي له «انفال» سره د ده د اتصال وجه دا ده: چې «انفال» په نزول کې مقدّم دی، نو بې له کومې خاصې وجې څخه ولې مؤخر کړی شي، او د دغو دواړو مضامین یو له بل سره دومره ارتباط او ورته والی لري؛ چې ګواکې «براءة» ته د «انفال» تتمّه او تکمله ویلی شي.

د «انفال» سورت زیاتره د «بدر» په غزا او د هغه په متعلقاتو مشتمل دی، «یوم البدر» ته قرآن (یوم الفرقان) ویلي دي؛ ځکه چې هغه د حق او باطل، د اسلام او کفر، د موحدینو او مشرکینو وضعیت بېخي سره بېل او جدا (جلا) کړ، د بدر غزا في الحقیقت د اسلام د عالم نیوونکې او ټینګې ورورۍ د تعمیر د تاداو (بنیاد) او د هغه د اساس تیره ده، او د اسلام د حکومت د تأسیس مقدمه ده.

د «انفال» د سورت په آخر کې د ﴿وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ په مقابل کې د خالص اخوت د تحکیم په منظور ﴿إِلَّا تَفْعَلُوهُ تَكُن فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيرٌ﴾ راغلی دی، د هغه ښکاره اقتضاء دا ده، چې په حسي ډول سره هم د دغې اسلامي ورورۍ د ټینګولو لپاره یو قوي مرکز وتاکل (مقرر) شي.

او دا هم معلومه ده، چې دغه مرکز له «جزیرة العرب» څخه پرته چې مکه معظمه یې زړه دی؛ بل ځای نشي کېدی.

د «انفال» په آخر کې دا هم ښرګنده شوې وه، هغه مسلمانان چې له مکّې معظمې او نورو ځایونو څنې یې هجرت نه دی کړی، او د کفارو تر سیوریو لاندې ژوندون تېروي؛ د دار الاسلام آزاد او خپلواک مسلمانانو باندې د هغوی د ولایت او رفاقت هیڅ یوه ذمه واري نشته: ﴿مَا لَكُم مِّن وَلَايَتِهِم مِّن شَيْءٍ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا﴾، هو ! د توان په اندازه له دوی سره مرسته په کار ده.

له دې نه دغه نتیجه ووته، چې د اسلام په مرکز کې د اسلامي موالاتو او اخوّت د کړیو د کلکې ارتباط لپاره له دوو خبرو څنې یوه خبره ضروري ده، یا د عربو ګرد مسلمانان دې خپل وطنونه پرېږدي، او مدینې منورې ته دې راشي، او په اسلامي اخوت کې دې بې له کوم ممانعته شامل شي، یا دې آزاد او خپلواک مسلمانان د خپلو مجاهدینو او سر جارولو په وسیله د کفر قوت مات کړي، او د «جزیرة العرب» سطحه دې داسې پاکه او صافه او هواره کړي؛ چې هیڅ یوه مسلمان ته د هجرت کولو ضرورت پاتې نشي.

یعنې تقریبا ګرده «جزیرة العرب» دې د خالص اسلامي اخوت داسې قوي مرکز او غیر مخلوط مستقر وګرځي؛ چې نور ادیان په کې نه وي، او د هغه تر حمایت لاندې د اسلامي اخوت د ډېر ټینګ او شانداره مستقبل هیله او امید وکړی شي، دغه دوهم صورت همداسې یوه وسیله ده، چې په هغې سره ورځ په ورځ د فتنې او فساد بیخونه ایستل کېدل.

د دغه اعلی او پاک مقصد لپاره مسلمانانو د هجرت په دویم کال کې اول قدم د «بدر» د میدان په لوري واخیست، چې بالآخره د هجرت په اتم کال کې د مکې معظمې لویې فتحې ته منتهي شو، هغه فتنې چې د اسلام په خپراوي یا حفاظت کې مزاحمې کېدې؛ د مکې فتحې له مینځه یوړې.

د «براءة» د سورت دمضامینو حاصل همدا دی، چې په څو ورځو کې د الله تعالی د رحمت او عظمت او د مسلمانانو د صداقت په قوت دغه د اسلام مرکز له هر ډول دسیسو، کفر، شرک او نورو څخه پاک شو، او ګرد (ټول) عرب لکه یو تن سره متحد شول، او په ګرد عالم کې د هدایت رڼا او د عالم نیوونکي اسلامي اخوت د انتشار کفیل او ضامن وګرځېد، فلله الحمد علی ذلک.

الغرض د «أنفال» په سورت کې د هغه شي ابتداء چې شوې ده؛ د «التوبة» یا «براءة» په سورت کې هغه انتهاء ده، نو د دې اول او آخر تناسب په لحاظ «براءة» د «أنفال» د تکملې په شان ملحق کړی شوی دی، په دغه سورت کې د تسمیې د نه لیکلو یوه وجه دا هم لیکلې شوې ده؛ چې تسمیه لپاره د امان ده، او دغه سورت د هجرت په نهم کال په هغه وخت کې چې د عربو ځینو اقوامو له مسلمانانو سره خپلې معاهدې ماتې کړې وې، د امان له منځه وړلو لپاره راغلی دی، او له همدې امله ده ته «مُخزِية، مشرّدة، منکلة، او فاضحة» هم ویلی شي، د دې سورت په نسبت مفسرینو نور مناسبات هم لیکلي دي، (علی الأکثر قاریان د دغه سورت ابتداء داسې پیلوي):

بَرَآءَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١﴾ فَسِيحُوا فِي الْأَرْضِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ ۙ وَأَنَّ اللَّهَ مُخْزِي الْكَافِرِينَ ﴿٢﴾

(دا) بیزاري (یا صاف ځواب) دی له (طرفه د) الله او (له طرفه) د رسول د الله هغو کسانو ته چې عهد ورسره کړی دی تاسې له مشرکانو. نو ګرځئ تاسې په (دغه) ځمکه کې څلور میاشتې، او پوه شئ (ای مشرکانو په دې!) چې ببشکه تاسې نه یئ عاجز کوونکي د الله (د عذاب خپل چې شوکت مهلت یې درکړ) او (پوه شئ په دې چې) ببشکه الله رسوا کوونکی د کافرانو دی.

**تفسیر:** د هجرت په شپږم کال کې د حُدیبیې په مقام کې کومه معاهده چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د قُریشو په منځ کې وشوه؛ نو بني خزاعه د مسلمانانو او بني بکر د قریشو په حلیفانو کې شامل شول، بني بکرو د معاهدې څه پروا ونه کړه، او پر بني خزاعه وو یې حمله وکړه، او قریشو په وسلو او نورو شیانو له دوی سره کومک وکړ، او د دې له امله قریش او د دوی حلیف دواړه د حدیبیې پر معاهده قائم پاتې نشول، چې د هغه په مقابل کې د هجرت په اتم کال نبي کریم صلی الله علیه وسلم پر مکې معظمې باندې حمله وکړه، او هغه یې په آسانۍ سره فتح کړه.

له دغو قبائلو څخه پرته له نورو قبائلو سره هم د مسلمانانو میعادي معاهدې او غیر میعادي معاهدې وې، چې له هغوی څخه ځینې په خپلو معاهدو ولاړ وو، ډېر قبائل داسې هم وو، چې له هغوی سره هیڅ قسم معاهده نه وه شوې، د دغه سورت مختلف آیتونه د مختلفو قبائلو په نسبت نازل شوي دي.

په لومړنیو آیتونو کې غالبا د هغو مشرکینو ذکر دی؛ چې له هغو سره خو معاهده شوې وه مګر غیر میعادي، دوی ته خبر ورکړ شو، چې مونږ وروسته له دې نه له تاسې سره معاهدې ته دوام نه ورکوو، او ماتوو یې، او تاسې ته څلور میاشتې مهلت درکوو، چې په دغه موده کې به یا په اسلامي أخوت کې داخلېږئ، یا به دغه وطن پرېږدئ، او د ایمان او توحید له مرکز څخه به وځئ، یا به د جنګ لپاره تیارېږئ؟ لیکن ښه وپوهېږئ چې تاسې د الله مشیئت او اراده له سره نشئ منع کولئ، که تاسې اسلام رانه وړئ؛ نو الله تعالی به مو په دنیا او آخرت کې رسوا کړي، او تاسې په خپلو تدابیرو او حیلو او پلمو سره هغه نشئ عاجزولی.

باقي هغه قبائل چې معاهده ورسره نه وه شوې، ممکن ده چې هغوی ته هم د څلورو میاشتو مهلت ورکړی شوی وي، دغه ابلاغ او همدارنګه د راتلونکو آیتونو عمومي اعلان د هجرت په نهم کال د حج په موقع د ګردو (ټولو) قبائلو په منځ کې علي رضي الله عنه وکړ، چې په دې وخت کې ابو بکر الصدیق رضي الله تعالی عنه امیرُ الحُجّاج وو.

وَأَذَانٌ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ إِلَى النَّاسِ يَوْمَ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ۙ وَرَسُولُهُ ۚ فَإِن تُبْتُمْ فَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ وَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّكُمْ غَيْرُ مُعْجِزِي اللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ الَّذِينَ كَفَرُوا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٣﴾

او خبرول (اورول) دي له (طرفه د) الله او رسول د دغه (الله) ټولو خلقو ته په ورځ د حج لوی کې په دې چې الله بېزاره دی له مشرکانو (او د دوی له عهد)، او رسول د دغه (الله هم بېزاره دی)؛ نو که توبه وویسته تاسې له (شرکه او غدره)؛ نو دا خیر (بهتره غوره) دی تاسې ته (له شرکه او غدره)، او که مخ واړاوه تاسې (له توبې په شرک مو دوام وکړ)؛ نو پوه شئ (ای مشرکانو !) بېشکه تاسې نه یئ عاجز کوونکي د الله، او زېرى ورکړه هغو کسانو ته چې کافران شوي دي په عذاب دردناك (د آخرت) سره.

تفسیر: (حج اکبر) یې ځکه وفرمایه چې (حج اصغر) عمره ده، او له (یوم الحجّ الأکبر) څخه د «ذي الحجة الحرام» لسمه د لوی اختر یا نهم تاریخ د عرفې ورځ مراد ده.

دغه اعلان غالبا د هغو قبائلو په حق کې دی، چې هغوی میعادي معاهده کړې وه، بیا یې په خپله ماته کړه (لکه بني بکرو یا قریشو او نورو)، یعنې له داسې خلقو سره اوس هیڅ قسم معاهده نه ده پاتې، خو که بیا هم دغه خلق له شرك او کفر څخه توبه وباسي؛ نو د دوی دنیا او آخرت دواړه ښه کیږي، که نه د الله تعالی هغه اراده چې کړې یې ده (د جزیرة العرب تطهیر) هغه ضرور پوره کېدونکې ده، هیڅ یو طاقت او تدبیر هغه نشي مغلوبولی، او کفارو ته د دوی د کفر او بد عهدۍ سزا هرومرو رسیږي.

تنبیه: که څه هم د مکې معظمې له فتحې څخه پخوا یعنې د هجرت له اتم کال نه مخکې د دغو قبائلو له خوا عهد مات شوی وو، چې د هغه په سزا کې مکه معظمه فتح شوه، خو بیا هم د عهد ماتولو عمومي اعلان د هجرت په نهم کال د حجّ په موقع کې وکړ شو، څو دغه خبره لا څرګنده او واضحه شي، چې له دغسې خلقو سره هیڅ قسم معاهده باقي نه ده پاتې.

إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدتُّم مِّنَ الْمُشْرِكِينَ ثُمَّ لَمْ يَنقُصُوكُمْ شَيْئًا وَلَمْ يُظَاهِرُوا عَلَيْكُمْ أَحَدًا فَأَتِمُّوا إِلَيْهِمْ عَهْدَهُمْ إِلَىٰ مُدَّتِهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ﴿٤﴾

مګر هغه کسان چې عهد کړی دی تاسې (ای مسلمانانو له دوی سره) له مشرکانو، بیا یې نقصان نه دی کړی له تاسې سره هیڅ شی (د وعدې په شرطونو کې)، او نه یې مرسته (مدد) کړې دی ستاسې په مقابل کې له هیچا سره (ستاسې له دښمنانو څخه)؛ نو پوره کړئ (ای مؤمنانو) له دغو مشرکانو سره عهد د دوی تر (تمامېدلو د مقررې) وعدې د دوی پورې، بېشکه الله خوښوي ځان ساتونکي (له بېوفایۍ).

تفسیر: دغه استثناء د هغو قبائلو لپاره ده چې معاهده یې میعادي وه، بیا دوی پرې ټینګ ولاړ وو، او د عهد په ایفاء کې یې هیڅ قصور نه وو کړی، نه دوی په خپله له عهده څخه مخالف کارروایي کوله، او نه یې له نورو بد عهدانو سره څه مرسته (مدد) کوله (لکه بني ضمره او بني مُدلج)، د دوی په نسبت اعلان وکړ شو، چې د معاهدې د میعاد له ختمېدلو څخه وروسته له دوی سره بله کومه معاهده نه ترله کیږي، او په هغه وخت کې له دوی سره هم همغه لاره ده، چې د نورو لپاره ده.

فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥﴾

نو کله چې تېرې شوې (څلور) میاشتې حرامې؛ نو وژنئ (ای مؤمنانو عهد ماتوونکي) مشرکان په هر ځای کې چې ومونډل تاسې دوی، او نیسئ (بندیان ـ قیدیان کړئ) دوی، او حصار کړئ دوی (په کلاګانو کې)، او کېنئ دوی ته (منتظر) په هر ځای د څارلو او تېرېدلو کې، نو که توبه وویسته دوی (له کفره) او قائم کړ دوی (سم اداء کړ سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکړ دوی زکات؛ نو خوشې کړئ تاسې لاره د دوی (او څه مه ورته وایئ)، بېشکه الله ښه بخښونکی (د خطیّاتو) ډېر مهربان دی.

تفسیر: یعنې که څه هم له دغو عهد ماتوونکو سره اوس هیڅ قسم معامله نه ده پاتې، او له هغوی سره سمدلاسه جنګ کېدی شي، خو بیا د «أشهر الحرم» رعایت یا د دې له امله پر دوی باندې له فوري حملې څخه مانع وو؛ چې تر هغه وخت پورې په (أشهر الحرم) کې په جنګ باندې لومړی شروع ممنوع وه، یا مصلحت دا وو چې د یوې ورو کې خبرې له امله د عامو خلقو په منځ کې ولې تشویش پیدا شي؟، څکه چې په دغو میاشتو کې د قتال حُرمت په دوې کې معروف او مسلّم او له پخوا راهیسې یوه منلې شوې خبره وه، په هر حال د محرّم الحرام تر ختمېدلو پورې هغوی ته مهلت ورکړ شو، چې هر ډول د دوی زړه غواړي؛ همغسې دې خپل تړون او بندوبست وکړي، وروسته له هغه د «جزیرة العرب» د تطهیر په مقصد له جنګ کولو څخه چاره نشته، نو هغه ګردې معاملې چې په جنګ کې کېدونکي دي (لکه وژل، نیول، چل او پلمې، په مورچلونو (مورچو) او پټونو کې غلیم ته څار کول او نور) کیږي به.

هو ! که دوی ظاهرا له کفر څخه توبه وباسي، او په اسلامي أخوت کې داخل شي، چې د هغه لویه نښه د لمانځه اداء او د زکات ورکړه ده؛ نو بیا به مسلمانان په هغوی باندې هیڅ تعرض او غرض نه کوي، او دوی به له لارې څخه نه ګرځوي، پاتې شوه باطني معامله هغه الله تعالی ته ورسپارلې شوې ده، د مسلمانانو معامله به له هغوی سره د هغوی د ظاهري اعمالو په اساس وي.

له دې آیت څنې معلومه شوه، که کوم سړی کلمه ووایي، او لمونځ ونه کړي، یا زکات ور نه کړي؛ نو مسلمانان د هغه لاره نیوی شي، د امام احمد، امام شافعي او امام مالك «رحمهم الله» په نزد پر اسلامي حکومت لازم دي: که تارك الصلاة توبه ونه باسي ؛ هغه دې ووژني، د امام احمد په نزد د مرتدوالي له امله او د امام مالك او امام شافعي په نزد حدّاً او تعزیراً، او څمونږ امام أبو حنیفه «رحمه الله» وایي چې: ښه دې یې ووهي، او بیا دې یې تر هغه پورې په بندیخانه کې بندي وساتي، چې یا له ترك الصلاة څخه توبه وباسي، یا همغلته مړ شي، په هر حال همداسې پرېښودل یې د هیچا په نزد نشته.

پاتې شول د زکات مانعین؛ د دوی له اموالو څنې دې حکومت جبراً زکات تحصیل کړي ! که دغه خلق لاس سره یو کړي او د حکومت پر خلاف وجنګیږي؛ نو سمې لارې ته د دوی د راوستلو لپاره دې جنګ هم وکړ شي ! ابوبکر صدیق رضي الله تعالی عنه هغه جهاد چې د زکات له مانعینو سره کړی دی؛ د هغه واقعات د احادیثو او تاریخ په کتابونو کې مشهور او معروف دي.

وَإِنْ أَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ أَبْلِغْهُ مَأْمَنَهُ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْلَمُونَ ﴿٦﴾

او که یو تن له مشرکانو څخه امن (پناه) وغواړي له تا (له قتله)؛ نو پناه ورکړه ته ! هغه ته څو چې واوري دی کلام د الله، بیا ورسوه ته دی ځای د امن (وطن) د ده ته (که ایمان یې رانه ووړ)، دغه

(امان لپاره د اوربدلو د قرآن) په سبب د دې دی چې بېشکه دوی (داسې) قوم دی چې نه پوهيږي (پـه قرآن او ايمان باندې).

تفسير: پخوا يې فرمايلي وو چې: كه دوى له خپلو كفرياتو ځنې توبه وكړي، او په اسلام كې داخل شي؛ نو په امن كې به شي، ممكن وو چې كوم سړى د اسلام له اصولو او احكامو څخه بېخبره وي، او د تحقيق او د شكونو د لرې كولو لپاره مسلمانانو ته راتلل غواړي؛ نو د هغو په نسبت يې فرمايلي دي چې: ته دغسې كسانو ته پناه وركړه، او ويې ساته ! او د الله تعالى كلام او د اسلام حقائق او دلائل ور واوروه ! كه قبول يې نه كړي مه يې وژنه ! بلكه هغه د خپلې هستوګنې او د امن ځاى ته ورسوه، چې هلته مأمون او مطمئن شي، وروسته له هغه دغه هم لكه د نورو ګردو كافرانو په شان دى، دغه د امن وركولو حكم څكه وركړى شوى دى؛ چې له اسلامي اصولو او حقائقو ځنې دغه وګړي نه دي خبر، نو ښايي هغوى ته حق په ډېر واضح او ښه ډول سره وربښكاره شي، كه وروسته له هغه دغه مستامنان او پناه غوښتونكي د عناد له لارې وانه وښتل، او همغسې معاند پاتې شول؛ نو د ﴿قَدْ تَّبَيَّنَ الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ﴾ څخه وروسته په دين كې څه زور او زياتى او جبر او اكراه نشته، او د امان له رفعې څخه وروسته به له هغوى سره د نورو كفّارو په شان معامله وشي.

كَيْفَ يَكُونُ لِلْمُشْرِكِينَ عَهْدٌ عِنْدَ اللَّهِ وَعِنْدَ رَسُولِهِ إِلَّا الَّذِينَ عَاهَدْتُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ فَمَا اسْتَقَامُوا لَكُمْ فَاسْتَقِيمُوا لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِينَ ۝ كَيْفَ وَإِنْ يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ لَا يَرْقُبُوا فِيكُمْ إِلًّا وَلَا ذِمَّةً ۚ يُرْضُونَكُمْ بِأَفْوَاهِهِمْ وَتَأْبَىٰ قُلُوبُهُمْ وَأَكْثَرُهُمْ فَاسِقُونَ ۝

څرنګه به وي مشركانو ته عهد په نزد د الله او په نزد د رسول د دغه (الله)؟ (يعني نه به وي) مګر هغه كسان چې عهد كړى دى تاسې (اى مؤمنانو له دوى سره) په نزد د مسجد الحرام (او بيا يې نه دى مات كړى)، نو څو چې برابر ولاړ اوسي دوى تاسې ته (په عهد خپل)؛ نو برابر ولاړ اوسئ تاسې (هم په عهد خپل) له هغوى سره، بېشكه چې الله خوښوي ځان ساتونكي (له بېوفايي نه). څرنګه (به وي دوى ته عهد او څه اعتبار دى پرې) حال دا چې كه لاس بر شي د دوى پرتاسې؛ نه ګوري (لحاظ نه كوي) دوى په باب ستاسې كې (نه) قرابت (يا قسم) ته او نه عهد ته (او هسې بريد به درباندې وكړي)، راضي كوي دوى تاسې په (تشو خبرو د) خولو خپلو سره، او منع كوي زړونه د دوى (د وعدې له وفاء)، او زياتره د دوى فاسقان (له فرمان څخه وتونكي) دي.

تفسير: يعنې د عربو له دغو مشركينو سره څنګه عهد قائم پاتې كېدى شي؟ او وروسته له دې نه څرنګه صلح ورسره كېدى شي؟ چې د هغوى احوال ستاسې مسلمانانو سره داسې دي: كه كوم وخت لږ څه فرصت پيدا كړي، او لاس يې پر تاسې باندې بر شي؛ نو په نقصان رسولو كې مطلقا نه د قرابت لحاظ كوي او نه د قول او اقرار، خو څرنګه چې يې په تاسې غلبه او برى نه دى حاصل كړى؛ نو ځكه له تاسې سره تش د ژبې عهد او پيمان كوي، او تاسې خوښوي، كه نه دوى په زړونو كې يوه شبيه هم پر دغه عهد باندې راضي نه دي.

په هر حال له داسې ټګانو او بد عهد قوم سره څرنګه د الله تعالى د رسول الله صلى الله عليه وسلم عهد كېدى شي؟ هو ! له هغو قبائلو سره چې تاسې بالخصوص د مسجد الحرام په قرب كې معاهده كړېده؛ نو تاسې ابتداء د هغې په ماتولو كې اقدام مه كوئ، تر هغه پورې چې دوى د وفادارۍ په لاره باندې سم روان دي، تاسې هم له هغوى سره بالمثل معامله وكړئ، لكه «بني كنانه او بني ضمره» او نور چې له مسلمانانو سره يې بد عهدي نه وه كړې، نو مسلمانانو هم په نهايت ديندارۍ او احتياط سره په خپل عهد وفا وكړه، د «براءة» د اعلان په وخت كې د دوى د معاهدې د نېټې تېرېدو ته لا (۹) مياشتې پاتې وې، خو په دغو نهو مياشتو كې هم دغه معامله محترمه او معموله وه.

اِشْتَرَوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝۹ لَا يَرْقُبُوْنَ
فِىْ مُؤْمِنٍ اِلًّا وَّلَا ذِمَّةً ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُعْتَدُوْنَ ۝۱۰

پیرودلي (او اخیستي) دي دوی په آیتونو (احکامو) د الله قیمت لږ، نو منع کوي دوی (خلق یا پخپله څنګ کوي) له لارې د الله (یعني له دین یا حج یا عمرې څخه)، بېشکه دوی (چې دي) بد کار دی هغه شی چې وو دوی چې کاوه به یې (هغه دا دی چې). نه ګوري (نه ساتي لحاظ نه کوي) دغه عهد ماتوونکي په (حق د هیڅ) مؤمن کې د قرابت (یا د قسم) او نه د عهد، او دغه کسان همدوی دي تېرېدونکي (له حده په شرارت کې).

فَاِنْ تَابُوْا وَاَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ فَاِخْوَانُكُمْ فِى الدِّيْنِ ؕ وَنُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝۱۱
وَاِنْ نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ عَهْدِهِمْ وَطَعَنُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ فَقَاتِلُوْٓا اَئِمَّةَ
الْكُفْرِ ۙ اِنَّهُمْ لَآ اَيْمَانَ لَهُمْ لَعَلَّهُمْ يَنْتَهُوْنَ ۝۱۲

نو که توبه وویسته (دوی له کفره) او قائم کړه دوی (سم یې اداء کړ سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکړه دوی زکات؛ نو وروڼه ستاسې دي په دین (حکم د شریعت) کې، او په تفصیل بیانوو (مونږ) آیتونه (حکمونه د قرآن) لپاره د (هغه) قوم چې پوهیږي (او فکر په کې کوي). او که مات کړل دغو (مشرکانو) قسمونه خپل وروسته له عهد تړلو د دوی (له تاسې سره) او پیغورونه درکړل (عیبونه یې ولګول) په دین ستاسې کې؛ نو وجنګېږئ تاسې له (دغو) مشرانو د کفر سره (او ویې وژنئ)، بېشکه دوی نشته قسمونه دوی ته (او قسم یې له سره قسم نه دی) لپاره د دې چې دوی واوړي (له پیغور یا د عهد له ماتولو یا له شرکه).

تفسیر: یعني که اوس له کفره توبه وباسئ، او دیني احکام (لکه لمونځ زکات او نور) په ځای کړي؛ نو نه یوازې په آینده کې مأمون او محفوظ پاتې کیږي، بلکه په اسلامي دین کې به هم شامل وي، او د هغو حقوقو مستحق ګرځي چې نور مسلمانان یې مستحق دي، او هغه ګردې (ټولې) بد عهدۍ او شرارتونه چې پخوا له دې نه یې کړي وي؛ ټول ورمعاف کیږي.

شاه صاحب «رحمه الله» لیکي چې: «دوی د شریعت په حکم وروڼه دي، له دې نه معلومیږي هر هغه څوک چې په ظاهر کې مسلمان برېښي، او په زړه کې یقین نه لري؛ نو هغه په ښکاره ډول (طریقه) سره مسلمان وګڼئ! مګر دوست او معتمد یې مه ګرځوئ!».

اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا نَّكَثُوْٓا اَيْمَانَهُمْ وَهَمُّوْا بِاِخْرَاجِ الرَّسُوْلِ وَهُمْ بَدَءُوْكُمْ اَوَّلَ
مَرَّةٍ ؕ اَتَخْشَوْنَهُمْ ۚ فَاللّٰهُ اَحَقُّ اَنْ تَخْشَوْهُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۝۱۳

آیا نه جنګېږئ تاسې (ای مؤمنانو بلکه ضرور وجنګېږئ) له داسې قوم سره چې مات کړي دي دوی قسمونه خپل، او قصد کړی دی دوی په ایستلو د رسول (څما له مکې نه)؟ حال دا چې همدوی شروع کړی دی له تاسې سره (جنګ او ماتول د عهد) اول کرت، آیا وېرېږئ تاسې له دوی نه؟، نو الله ښه لایق دی په دې سره چې ووېرېږئ تاسې ترې (او له کفارو سره قتال وکړئ) که یئ تاسې مؤمنان (باور کوونکي).

تفسير: قريشو خپل قسمونه او معاهدې ماتې کړې وې، ځکه چې د خپل عهد په خلاف يې د «خزاعه وو» په مقابل کې د «بني بكرو» سره مرسته کړې وه، حال دا چې دوی قسمونه کړي وو، چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خلاف کې له هيچا سره ملا نه تړو، او يو د بل حليف به نه زهيروو، او نه به يې رنځوو، او بيا د رسول الله صلی الله عليه وسلم له حليفانو سره چې «بني خزاعه» وو؛ جنګ وکړ.

د ﴿أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا﴾ الآيه ـ څخه دغه غرض معلوميږي: هر قوم چې دا قسم احوال لري، له هغوی سره په جنګېدلو کې مسلمانانو ته هيڅکله هيڅ تأمّل او تردّد نه دی پکار، که له مسلمانانو سره د کفارو له قوت او جمعيت او وسلې او سامان او نورو څنې ويره وي؛ نو مؤمنانو لره له ګردو څخه زيات د الله تعالی خوف او ويره پکار ده، کله چې د الله تعالی ويره په زړونو کې راشي؛ نو بيا ګردې (ټولې) نورې ويرې له زړونو څخه ووځي، او د الله جل جلاله له قهر او غضب څنې ويره او لړزه پيدا کيږي، ځکه چې نفع او ضرر ګرد د الله تعالی په واک کې دی، او هيڅ يو مخلوق د الله تعالی له مشيئت څخه پر ته (علاوه) لږ ګټه (فائده) او زيان هم چا ته نشي رسولی، او نه پرې قدرت لري.

قَاتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنْصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ ﴿١٤﴾ وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ ۗ وَيَتُوبُ اللَّهُ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٥﴾

وجنګيږئ تاسې له دغو (کفّارو) سره (ای مؤمنانو) چې په عذاب کړي دوی الله په لاسونو ستاسې (په قتل سره) او رسوا کړي دوی (په مغلوبيت او مقهوريت سره) او مرسته (مدد) درکړي تاسې ته پر دغو (کفارو) باندې، او شفاء ورکړي (زخمي) سينو د قوم مؤمنانو ته (او يخ روغ کړي زخمي زړونه د دوی). او لرې کړي (بوځي) قهر او (خفګان) د زړونو د دغو (مؤمنانو چې د کفارو له ايذاء څخه پيدا وو)، او رجوع کوي الله په رحمت سره پر هغه چا چې اراده وفرمايي (د هدايت يې)، او الله ښه عالم دی (په ټولو احوالو او اشياوو) ښه حکمت والا دی.

تفسير: په جهاد کې يوه فائده داده چې: مکذبينو او فتنه اچوونکو ته الله تعالی د بلا واسطې عذاب ورکولو په ځای د خپلو مخلصو وفادارو بندګانو په لاس سزا ورکړي، د سزا ورکولو په دغه صورت کې د مجرمينو تذليل او رُسوايي او د مخلصينو تقدير او سر لوړي ډېره زياته کيږي، او د وفادارو بندګانو نصرت او غلبه علانيه ظاهريږي، د دوی زړونه د دغې منظرې له ليدلو څخه يخيږي، چې هغه وګړي (عالم) او خلق چې تر پرون پورې يې مونږ ته د حقارت او سپکتيا په سترګو کتل، او پر مونږ باندې يې ظلم، استهزاء، او تمسخر کاوه، او پر مونږ باندې يې ملنډې وهلې؛ نن د الله تعالی په تأييد او رحمت سره همدا څمونږ رحم، کرم، عدل، انصاف، او انسانيت ته سپارلي شوي دي.

د کفر او باطل د شوکت او ننداري له ليدلو څخه اهل الحق پخسېدل او ويلېدل يا هغه ضعيف او مظلوم مسلمانان چې د کفارو د مظالمو انتقام يې نشو اخيستلی، او له دې سببه د دوی په سرونو کې قهر او غوصې، غيظ او غضب جوش کاوه، او دوی خپلې شونډې هم نشوې خوځولی، اوس د جهاد في سبيل الله په وسيله د دوی زړونه تسکين مومي.

آخري خبره دا ده چې پخپله د مجرمينو په حق کې هم دغه د سزا ورکولو طريقه نسبتاً ډېره نافع ده، ځکه چې د سزا موندلو څخه وروسته هم د رجوع او توبې دروازې پرانستلې دي، او ډېر ممکن دي چې له حالاتو څخه عبرت حاصل کړي، او ډېرو مجرمينو ته توبه ور په برخه شي، لکه چې د رسول الله مبارک په زمانه کې همداسې هم وشول، چې په لږه موده کې ګرد (ټول) عرب د زړه له صدقه مسلمانان شول.

أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا وَلَمَّا يَعْلَمِ اللَّهُ الَّذِينَ جَاهَدُوا مِنْكُمْ وَلَمْ يَتَّخِذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَا رَسُولِهِ وَلَا الْمُؤْمِنِينَ وَلِيجَةً ۚ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٦﴾

آیا ګمان کوئ تاسي (ای مؤمنانو) داسې چې (همداسې) به پرېښود شئ؟ حال دا چې له سره نه دي معلوم کړي الله (په علم ظهور سره) هغه کسان چې جهاد يې کړی له تاسې څخه، او چې نه دي نيولي دوی پرته (له علاوه) له الله او پرته له رسول د دغه (الله) او پرته له مؤمنانو د پټو خبرو دوست، او الله ښه خبردار دی په هغو (کارونو) چې کوئ (يې) تاسې (د نېکۍ او بدۍ).

تفسير: «آیا ګمان کوئ ای مؤمنانو چې له قتاله وېرېږئ؟ يا ای منافقانو داسې چې پرې به ښود شئ په دې حال سره، يعنې داسې له سره ګمان مه کوئ، چې تشه دعوی د اسلام به ستاسې الله تعالی منظوره کړي، او جلا (جدا) به نه کړي په تاسې کې مخلص له غير مخلص څخه، الله تعالی د جهاد د مشروعيت يو بل حکمت دلته بيان فرمايي.

يعنې هغه کسان ډېر دي چې په خولې سره د ايمان او بندګۍ دعوی کوي، خو که دوی د امتحان پر محکّ (کرکاڼې) باندې ونه سولول شي؛ نو سره او ناسره (چل او ناچل) يې له سره نه څرګندېږي، د جهاد په ذريعه الله تعالی په علم ظهور سره هم دا معلومول چې څومره مسلمانان داسې دي، چې د ده په لاره کې خپل سر او مال جارولو او ښندلو ته تيار دي؟ او پرته (علاوه) له الله تعالی او رسول الله صلی الله عليه وسلم بل هيڅوک خپل رازدار بادار (سردار) او خصوصي يار نه ګرځوي، اګر که هغه ډېر نژدې خپل او قريب يې هم وي.

مَا كَانَ لِلْمُشْرِكِينَ أَنْ يَعْمُرُوا مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ شَٰهِدِينَ عَلَىٰٓ أَنفُسِهِم بِٱلْكُفْرِ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَٰلُهُمْ وَفِى ٱلنَّارِ هُمْ خَٰلِدُونَ ﴿١٧﴾ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنْ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْءَاخِرِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا ٱللَّهَ ۖ فَعَسَىٰٓ أُو۟لَٰٓئِكَ أَن يَكُونُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْتَدِينَ ﴿١٨﴾

نشته مشرکانو ته (يعنې ناروا دي يا نه دي له شانه د مشرکانو) دا چې ودان کړي مسجدونه د الله (په عبادت په ناسته ولاړه او ورتلو سره) حال دا چې شاهدان وي دوی پر نفسونو خپلو په کفر سره، دغه (مشرکان ابته او) خراب دي عملونه د دوی (چې ايمان نه لري)، او په اور کې به دوی همېشه وي. بېشکه همدا خبره ده چې ودانوي (په عبادت ناسته ولاړه، په تعمير سره) مسجدونه د الله هغه څوک چې ايمان يې راوړی وي په الله او په ورځې آخرې (د قيامت)، او قائموي (سم ادا کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکوي زکات او نه وېرېږي (په ديني امورو کې له هيچا) مګر له الله څخه، نو اميد دی چې دغه کسان به وي له سمې لارې موندونکو څخې.

تفسير: د مساجدو حقيقي وداني دا ده چې په هغو کې د يوه الله عبادت د هغه له شانه سره لايق وشي، د الله جل جلاله ذکر کوونکي په کثرت سره په کې موجود وي، څو بې له څه ممانعت او تکليف څخه د الله تعالی په ياد مشغول اوسي، له بربادو او لغوياتو او خرافاتو څخه دغه پاک مقامات محفوظ وي، دغه مقصد له کفارو او مشرکينو څخې کله حاصلېدی شي؟.

وګورئ چې د مکې معظمې مشرکينو په ډېر فخر سره خپل ځانونه د مسجد الحرام متوليان او خادمان بلل، مګر د دوی لوی خدمت دا وو، چې د تيرو (ګټو) ډېر بتان يې په کعبې شريفې کې ايښي وو، او د همغو نذرونه او نيازونه به يې ورکول، او د دوی نذرونه به يې په غاړو اخيستل، ډېرو کسانو به لوڅ پوڅ (بربنډ) طوافونه کول، د ذکر الله په ځای به يې شپيلي وهل او لاسونه به يې ټکول، او د الله تعالی رښتينو بندګانو ته به يې اجازه نه ورکوله؛ چې هلته ورشي، د هغوی لوی عبادت همدا وو چې حاجيانو ته به يې د ځښلو اوبه ويړيا ورکولې، يا به يې د حرم شريف ډيوې لګولې، يا به يې په کعبې شريفې پردې ځړولې، يا به يې د ضرورت په وخت کې د هغې د نړېدلو او لوېدلو ځايونو ترميم او ودانولو ته توجه کوله، مګر دغه اعمال ګرد بې روحه او بې معنی وو، ځکه کله چې مشرک ته په الله تعالی صحيح ايمان نه دی حاصل؛ نو په هيڅ يوه عمل کې د هغه د توجه قبله او د اخلاص مرکز د «وحده لا شريک له د منبع

الکمالات ذات» نشي کېدی، نو ځکه د کافر هیڅ یو عمل د الله تعالی په نزد روح نه لري، او د اعتناء وړ (لایق) نه دی، همدغه یې په ﴿حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ﴾ سره تعبیر وفرمایه.

اَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاۤجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَجٰهَدَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ لَا يَسْتَوٗنَ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹﴾

آیا ګڼلي (ګرځولي) دي تاسې اوبه ورکول حاجیانو ته او ودانول د مسجد حرام په مثل (د ایمان) د هغه چا چې ایمان لري په الله او (په) ورځې آخرې (د قیامت) او جهاد یې کړی وي په لاره د الله کې، نه دي برابر دوی په نزد د الله، او الله نه ښیي سمه صافه لاره قوم ظالمانو ته.

تفسیر: د مکې معظمې مشرکانو په دې باندې ډېر افتخار درلود (لرلو) او نازېدل چې مونږ د حاجیانو خدمتونه کوو، او دوی ته اوبه او ډوډۍ اوکالي (کپړې) ورکوو، د مسجد الحرام د ترمیم یا د کعبې شریفې د کسوت (پوښ) یا تېل او باتۍ او د نورو انتظام کوو، که مسلمانان په خپل جهاد، هجرت او نورو باندې نازېږي؛ نو له مونږ سره د عبادتونو دغه ذخیره شته.

په یوه زمانه کې عباس رضي الله تعالی عنه له علي رضي الله عنه سره همدغه مباحثه په همدغه شان کړې وه، بلکه په صحیح مسلم کې راغلي دي، چې یو څلې څو تنو مسلمانانو په خپلو منځو کې جګړې سره کولې، لومړني وویل چې: «ځما په خیال له اسلام راوړلو څخه وروسته حاجیانو ته د اوبو ورکولو څخه بل ښه کار نشته»، دویم وویل: «چې ځما په نزد له اسلام راوړلو نه وروسته ډېر ښه عمل د مسجد الحرام خدمت دی، مثلاً د هغه جارو کول، ډیوې لګول، حاجیانو ته اوبه او ډوډۍ ورکول او نور، درییم وویل: چې د الله تعالی په لار کې جهاد له ګردو (ټولو) عبادتونو او اعمالو څخه افضل او اشرف دی».

عمر رضي الله تعالی عنه په دوی باندې په قهر شو، او ویې ویل چې: «تاسې چې د جمعې د لمانځه لپاره راغلي یئ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم منبر ته نژدې ناست یئ، ولې سره داسې مباحثې کوئ، لږ څه صبر وکړئ ! کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فارغ شو؛ نو د دغې خبرې پوښتنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وکړئ !»، د جمعې له لمانځه څخه وروسته کله چې له رسول الله مبارک څخه دغه پوښتنه وشوه، نو دغه آیت نازل شو: ﴿اَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاۤجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾ الآیه ـ یعني حاجیانو ته اوبه ورکول او په ظاهري ډول (طریقه) د مسجد الحرام ترمیم او ودانول له ایمان بالله او جهاد في سبیل الله له هیڅ یو سره نشي برابر کېدی، نو د أفضلیت پوښتنه ولې کوئ؟

د ایمان بالله ذکر د جهاد في سبیل الله د تمهید لپاره دی، اصلي مقصود د جهاد او د نورو لویو لویو اعمالو د افضلیت بیان فرمایل دي، د ایمان په ذکر سره یې تنبیه وفرمایله، چې بې له ایمانه د الله جل جلاله په لار کې جهاد یا بل کوم عمل هیڅ ګټه (فائده) نه لري، او محض لاشي دی، د دغو لویو لویو اعمالو (جهاد او هجرت او نورو) ارزښت هم په ایمان بالله پورې اړه لري، او په دغه نکته همغه خلق پوهېږي، چې د سلیم فهم خاوندان وي، د ظالمانو (بې ځایه کار کوونکو) فهم دغو حقائقو ته نشي رسېدی.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجٰهَدُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ۙ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۲۰﴾ يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِّنْهُ وَرِضْوَانٍ وَّجَنّٰتٍ لَّهُمْ فِيْهَا نَعِيْمٌ مُّقِيْمٌ ﴿۲۱﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗۤ اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۲۲﴾

هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی (په ټولو مؤمن به شیانو) او هجرت یې کړی دی او جهاد یې کړی په لاره د الله کې (د دین د ترقی لپاره) په مالونو خپلو (چې په جهاد کې یې لګوي) او

په ځانونو خپلو (چې په غزا کې يې قربانوي) ډېر لوی دي (له نورو نه) له جهته د درجې په نزد د الله، او همدغه (ستايل شوي) کسان همدوی دي په مراد رسيدونکي. زېری کوي په دوی رب د دوی په رحمت سره له جانبه خپله او په رضامندۍ سره او په جنتونو سره چې وي به دوی ته په دغو (جنتونو) کې نعمتونه همېشه (دائم بلا انقطاع). حال دا چې همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو) کې تل تر تله، بېشکه الله همده سره دی اجر (ثواب) ډېر لوی.

**تفسير:** يعنې د الله تعالى په دربار کې د ثوابونو او درجو څه کمی دی؟ هر چا ته چې هر څومره اراده وفرمايي؛ ورکوي يې، په ړومبني آيت کې د درېو شيانو ذکر وو:

(۱): ايمان. (۲): جهاد. (۳): هجرت، پر دغو باندې د دريو شيانو بشارت يې هم مرحمت وفرمايه:

(۱): د الله تعالى رحمت. (۲): د الله تعالى رضا. (۳): په جنت کې تل پاتې کېدل، ابو حيان «رحمه الله» ليکي «چې: «رحمت» په ايمان مرتب دی، هغه څوک چې ايمان نه لري؛ نو په آخرت کې د الله تعالى له رحمت او مهرباني څخه بې برخې پاتې کيږي، او «رضوان» چې ډېر اعلى مقام دی، د جهاد في سبيل الله صله او انعام دی، لکه چې مجاهد في سبيل الله د نفساني ګردو (ټولو) خوندونو او تعلقاتو په ترک سره د الله تعالى په لاره کې خپل ځان او مال قربانوي، او د الله تعالى د خوښې د حصول لپاره خپله انتهايي قرباني وړاندې کوي، نو ښايي چې د هغه صله او انعام هم انتهايي وي، او هغه د الله تعالى «جل وعلا شأنه» د رضا مقام دی.

پاتې شو «هجرت» چې هغه د الله جل جلاله لپاره دکور، کورنۍ او طن د پرېښودلو نوم دی، نو څکه مهاجر ته زېری ورکړی شوی دی، چې ستا له وطنه ډېر ښه وطن او ستا له کوره ډېر ښه کور درکول کيږي، چې په کې همېشه اعلی درجه هوساينه (آرام) او راحت وي، او تل به په کې اوسيږي، او له هغه څخه به بيا هجرت کولو ته له سره نه مجبوريږي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوٓا۟ ءَابَآءَكُمْ وَإِخْوَٰنَكُمْ أَوْلِيَآءَ إِنِ ٱسْتَحَبُّوا۟ ٱلْكُفْرَ عَلَى ٱلْإِيمَٰنِ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٢٣﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) مه نيسئ تاسې پلرونه خپل او وروڼه خپل دوستان که محبوب ګڼلو دوی کفر په ايمان، او هر چا چې دوستي وکړه له دغو (کفارو) سره له تاسې نو دغه کسان همدوی دي ظالمان.

قُلْ إِن كَانَ ءَابَآؤُكُمْ وَأَبْنَآؤُكُمْ وَإِخْوَٰنُكُمْ وَأَزْوَٰجُكُمْ وَعَشِيرَتُكُمْ وَأَمْوَٰلٌ ٱقْتَرَفْتُمُوهَا وَتِجَٰرَةٌ تَخْشَوْنَ كَسَادَهَا وَمَسَٰكِنُ تَرْضَوْنَهَآ أَحَبَّ إِلَيْكُم مِّنَ ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَجِهَادٍ فِى سَبِيلِهِۦ فَتَرَبَّصُوا۟ حَتَّىٰ يَأْتِىَ ٱللَّهُ بِأَمْرِهِۦ ۗ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٢٤﴾

ووايه (ای محمده ! عذر ويونکو ته د هجرت له ترکه) که وي پلرونه ستاسې، او ځامن ستاسې، او وروڼه ستاسې، او ښځې ستاسې، او خپلوان ستاسې، او هغه مالونه چې ګټلي دي تاسې هغه او (هغه) تجارت (سوداګري) چې وېرېږئ تاسې د ناچلېدلو د هغې، او هغه ځايونه د هستوګنې چې خوښوئ تاسې هغه؛ ډېر محبوب تاسې ته له الله نه، او له رسول د الله نه، او له جهاده په لاره د الله کې (لپاره د ترقۍ د دين)؛ نو انتظار کوئ تاسې تر هغه پورې چې راولي (راوليږي) الله امر (حکم د عذاب) خپل، او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم فاسقانو ته.

تفسیر: په حدیث کې راغلي دي: «کله چې تاسې د غوایي په لکۍ پسې روان شئ، او غویې له لکۍ څخه ونیسئ، او یواځې په کښت (فصل) او کر باندې راضي شئ، او له جهاده غافل شئ، نو پاک الله به پر تاسې یو ذلت مسلّط کړي، چې له هغه څخه به له سره نشئ بچ کېدی، تر هغه پورې چې بیا د دین (یعنې في سبیل الله جهاد) په لوري بېرته وګرځئ!.

لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ فِیْ مَوَاطِنَ كَثِیْرَةٍ ۙ وَّ یَوْمَ حُنَیْنٍ ۙ اِذْ اَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَیْـًٔا وَّ ضَاقَتْ عَلَیْكُمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّیْتُمْ مُّدْبِرِیْنَ ۟ۚ۲۵ ثُمَّ اَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِیْنَتَهٗ عَلٰی رَسُوْلِهٖ وَ عَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ وَ اَنْزَلَ جُنُوْدًا لَّمْ تَرَوْهَا ۚ وَ عَذَّبَ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا ؕ وَ ذٰلِكَ جَزَآءُ الْكٰفِرِیْنَ ۲۶

خامخا په تحقیق مدد کړی دی له تاسې سره الله په ځایونو ډېرو کې، او (خصوصا) په ورځ د حنین کې کله چې تعجب کې واچولئ (خوشحالۍ او فخر کې واچولې) ډېروالي ستاسې؛ نو دفع نه کړ (ډیروالي) له تاسې ځنې هیڅ شی (له حملې د دښمن نه)، او تنګه شوه (له وېرې) پر تاسو باندې ځمکه سره د ارتوالي د دې، بیا شا کړه تاسې (دښمن ته) حال دا چې شا ګرځوونکي (تښتېدونکي) وئ. بیا راولېږه الله تسکین خپل (چې د مؤمنانو د زړونو د آرامۍ سبب شي) پر رسول خپل (چې یواځې د غزا په ډګر کې ولاړ وو)، او پر مؤمنانو (چې بېرته وګرځېدل غزا ته)، او راولېږلې (الله) لښکرې (د ملائکو) چې نه وې لیدلې تاسې دا لښکرې، او په عذاب یې کړل هغه کسان چې کافران شوي وو، او همدا (تعذیب) سزا ده د کافرانو.

تفسیر: دلته خبرداری ورکوي چې مجاهدینو ته دا هم نه ښایي؛ چې په خپل لښکري جمعیت او کثرت باندې غرور او تکبّر وکړي، ځکه چې نصرت او بری یواځې د الله په مرسته او مدد پورې تړلی دی، چې دغسې تجربه تاسې پخوا له دې نه په ځو ځو نورو میدانونو کې هم کړې ده، هغه نتائج چې په «بدر، قریظه، نضیر، حُدیبیه» او نورو کې ستاسې په برخه شوي دي؛ هغه ټول د الهي امداد او د غیبي تایید محصول وو، او اوس په آخره کې د «حنین» د غزا واقعه خو داسې یوه صریحه، عجیبه، او غریبه د آسماني نصرت او امداد ښېه ده، چې پر هغې سختو معاندو دښمنانو هم اقرار کړی دی.

د مکې معظمې له فتحې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خبر راورسېد، چې د هوازن او ثقیف او نورو عربي قبائلو یو جرّار او قوي لښکر سره ټول او تیار کړی دی، او غواړي چې په ډېره دبدبه او زور سره پر مسلمانانو حمله وکړي، نو سمدلاسه له مهاجرینو او انصارو څخه همغه لس زري لښکر چې د مکې معظمې د فتحې لپاره له مدینې منورې څخه راغلی وو؛ د «طائف» په لوري ور روان شو، هغه دوه زره طلقاء (آزاد شوي) چې د مکې معظمې د فتحې په وخت کې مسلمانان شوي وو، هم له دوی سره مله وو.

دغه اول ځل دی، چې دولس زره مجهّز عظیم الشأن اسلامي لښکر د جهاد د میدان لوري ته رهي کیږي، د دې منظرې د لیدلو څخه ځینو صحابه وو خپل ځان د دې خبرې د ویلو څخه ونشو ساتلی، او په ښکاره ډول یې وویل: «کله به چې مونږ ډېر لږ وو؛ نو په هغه وخت کې به تل بریالي وو، نن چې مونږ دومره ډېر یو؛ نو هیڅوک مونږ ته ماتې نشي راکولی»، د مېړنیو (بهادرانو) موحدینو له خولې څخه د دغو جملې وتل د پاک الله جل جلاله په دربار کې ناوړه واقع شول، دوی لا د مکې معظمې څخه دومره لرې نه وو تللي، چې دواړه لښکرې سره مخامخ شوې، چې د مخالفې ډلې لښکر څلور زره تنه وو، چې خپل کفنونه یې پر سر تړلي وو، او له خپلو ښځو او کوچنیانو سره د جنګ میدان ته چمتو

شول، او د يوه فيصله کوونکي جنګ لپاره بيخي تيار او منتظر وو، او له اوښانو، آسونو، مواشيو، او د خپلو کورونو ګرد پنډ پنډ مالونو او اسبابونو سره د جګړې ډګر ته وتلي وو.

د «هوازن» قبيلې د غشو ويشتلو په فن کې په ګرد عربستان کې شهرت درلود، د دوی ډېرو ماهرو او غښتلو غشو ويشتونکو د «حُنين» د وادي په لښکرو او مورچلو کې ډېر ټينګ، ټينګ ځايونه نيولي او په کې پټ ناست وو.

په صحيحينو کې د «براء بن عازب رضي الله عنه» روايت دی، چې په ړومبنی معرکه او جنګ کې کفارو ماتې وکړه، او ډېر زيات مال، اسباب، او سامان ور څخه پاتې شول، او دوی ترې وتښتېدل، دلته مسلمانان مجاهدين غنيمت او ولجې ته متوجه شول، په دغه ترڅ کې د هوازن غشي ويشتونکو څارونکو له مورچلو څخه په سختو غشو ويشتلو باندې لاسونه پورې کړل، او په مسلمانانو پسې ووتل، او سخته غلبله او شور ماشور جوړ شو، او په يوه شېبه کې له څلورو خواوو لکه ږلۍ غوندې د غشو اورېدل شروع شول.

خبره تر دې حده پورې ورسېده چې مسلمانانو ته هلته درېدل او پښه ټينګول مشکل شول، اسلامي لښکر بيخي خور وور او تيت پرک (منتشر) شوی دی، مګر يوازې له محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يو رفيق اعلى شته، د ربّاني تاييد او آسماني ډاډ غير مرئي باران پر دوی پر څو تنو غوره اصحابو اوري، چې د هغه اثر بالآخر تر تښتېدونکو پورې رسيږي.

له هغه لوري چې د «هوازن» او «ثقيف» سيلاو مخ په وړاندې بهيږي، په هغه لوري د محمدي سورلی مخ دی، او په ژبه يې په نهايت استغناء او اطمينان سره د «أنا النبي لا کذب، أنا ابن عبد المطّلب» وينا جاري ده، يعنې بېشکه زه په رښتيا سره رسول او د عبد المطلب له اولادې څخه يم.

په همدغه حالت کې دوی خپلو اصحابو ته نارې کړې: «إلي عباد الله ! إلي أنا رسول الله» «ای د الله تعالی بندګانو ما ته راشئ ! او ځما په لوري رادرومئ چې زه د الله تعالی رسول يم».

بيا ځمونږ د رسول أکرم صلى الله عليه وسلم له هدايت سره سم عبّاس رضي الله تعالى عنه چې د ډېر لوړ غږ خاوند وو، «أصحاب السمرة» ته ورنارې کړې، چې هغوی تر ونې لاندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر لاس د جهاد بيعت کړی وو، مجاهدينو غوږونو ته د دې غږ په رسېدو سره سم دوی د خپلو سورليو مخونه د جنګ د ميدان په لوري وګرځول، د هر سړي اوښ چې بېرته ګرځېدلو کې لږ څه معطلي يا ډيل کاوه؛ نو دی به سمدلاسه خپلې وسلې سره د اوښ له شا څخه کوزيده، او خپله سورلی او کالي (سامان) به يې هملته خوشې پرېښودل، او ځان به يې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته رساوه.

په دغه وخت کې رسول الله مبارک لږ څه خاورې اوشګې په لاس کې واخيستې، او د کفارو د لښکرو په لوري يې وروشيندلې، چې هغه د الله تعالى په قدرت د هر کافر په مخ او سترګو کې ولوېدې، له بل لوري الله تعالى له آسمانه پرښتې ورولېږلې، کفّارو د هغو شګو له اثره خپلې سترګې مښلې، او هغه مسلمانان چې دوی ته ورنژدې وو، مخ په بېرته پر هغوی يې حمله وروړه، او د پاک رسول صلى الله عليه وسلم په حضور کې ورحاضر شول، او ويې کتل چې جنګ پای ته رسېدلی او برى د مسلمانانو په برخه شوی دی، او په زرهاوو بنديان د پاک رسول په مخ کې تړلي ولاړ دي، او د غنيمت او ولجو ډېر مالونه د دوی په شاوخوا کې پراته دي، ﴿فَسُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيۡءٖ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ﴾ په دې ډول سره کفارو ته په دنيا کې سزا ورکړه شوه.

﴿ثُمَّ يَتُوبُ ٱللَّهُ مِنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَ عَلَىٰ مَن يَشَآءُۗ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ٢٧﴾

او بيا به رجوع وکړي الله (د توبې په قبول) پس له دې (د حُنين له جنګه) پر هغه چا چې اراده وفرمايي (د رجوع)، او الله ډېر بخښونکی (د خطيئاتو) ښه رحم کوونکی دی.

تفسير: لکه چې هوازن او نورو ته وروسته له دې نه توبه ور په برخه شوه، او زیاتره مسلمانان شول.

يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هَذَا ۚ وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِنْ فَضْلِهِ إِنْ شَاءَ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿۲۸﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) بېشکه همدا خبره ده چې مشرکان نجس (پلیت) دي، نو نه دې نژدې کېږي دوی مسجد حرام ته وروسته له کاله د دوی چې دغه (۹ کال د هجرت دی)، او که وېرېږئ تاسې له فقره په (سبب د منع د دوی)؛ نو ژر به غنیان کړي تاسې الله له فضله خپله که اراده وفرمايي (د غنا ستاسې)، بېشکه چې الله ښه عالم دی (په ټولو احوالو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسير: کله چې الله تعالی د شرک زور او قوت مات کړ، او د جزیرة العرب مرکز «مکه معظمه» یې د مسلمانانو په لاس فتحه او د اسلام په قبضه کې یې راوسته، او عربي قبائلو فوځ، فوځ د اسلام په دائره کې په ننوتلو شروع وکړه، نو د هجرت په نهم کال کې اعلان وشو، چې وروسته له دې نه دې هیڅ یو مشرک یا کافر په مسجد حرام کې نه داخلېږي، بلکه هغه ته نژدې یعنې د حرم حدودو ته دې هم نه راځي !، ځکه چې د هغوی زړونه د شرک او کفر له نجاسته دومره پلیت او ګنده شوي دي؛ چې حق نه لري دغه مقدس مقام او د توحید او ایمان مرکز ته داخل شي.

برسېره په دې له صحیحو احادیثو ځنې هم ثابته ده، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جزیرة العرب ځنې د ګردو (ټولو) مشرکینو او یهودانو او نصرانیانو د ایستلو حکم ورکړی دی، لکه چې ځمونږ د پاک نبي له وروستني وصیت سره سم د عمر فاروق رضي الله تعالی عنه په خلافت کې دغه حُکم عملاً نافذ شو، اوس مسلمانانو ته روا نه دي، چې په دې راضي شي چې کفّار د عربو په خاوره کې د استیلاء یا د توطّن په ډول پاتې شي، بلکه د جزیرة العرب تطهیر د توان په اندازه د مسلمانانو فریضه ده.

﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً﴾ الآیه ـ حرم شریف ته د مشرکینو د تګ او راتګ له بندېدلو ځخه مسلمانانو ته داسې اندېښنه پیدا شوه، چې په تجارت او نورو دنیوي چارو کې به لوی تاوان راورسېږي، او هغه شیان چې دغو مشرکینو د تجارت له پاره راوړل، وروسته له دې به یې نه راوړي، نو ځکه یې تسلي وفرمایله، چې تاسې له دغو خبرو ځخه مه وېرېږئ، ځکه چې ستاسې غنا یواځې د «رب، الأعلی» په مشیئت پورې موقوفه ده، که الله تعالی اراده وفرمايي نو په هغه کې به هیڅ ځنډ رانشي، لکه چې همداسې هم وشول، الله تعالی ګرد مسلمانان کړل، او له مختلفو ملکونو ځخه د تجارتي مالونو راتلل شروع شول، ښه بارانونه واورېدل، چې د هغو لامله حاصلات زیات شول، د فتوحاتو او غنائمو دروازې پرانستل شوې، د کتابیانو او نورو ځنې د جزیې پیسې ورجاري شوې، الغرض الله تعالی له مختلفو لارو د مسلمانانو لپاره د غناء اسباب پیدا کړل، بېشکه چې د الله تعالی هیڅ یو حکم له حکمته خالي نه دی.

قَاتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَهُمْ صَاغِرُونَ ﴿۲۹﴾

وجنګېږئ تاسې له هغو کسانو سره چې نه راوړي ایمان پر الله، او نه په ورځې آخرې باندې (ځکه چې په پاک محمد یې ایمان نه دی راوړی) او نه حرام ګڼي دوی هغه چې حرام کړي الله

(په قرآن کې) او رسول د دغه (الله په حدیثونو کې) او نه قبلوي دوی دین حق (د اسلام، دغه مذکورین) له هغو نه (دي) چې ورکړې شوی دی دوی ته کتاب، (جنګ ورسره کوئ) تر هغه پورې چې ورکړي دوی جزیه له (خپله) لاسه حال دا چې دوی ذلیل وي.

تفسیر: کله چې د مشرکانو معامله پاکه او د ملک سطحه لږ څه هواره او مخه صافه شوه؛ نو حکم وشو چې د کتابیانو (یهودو او نصاراوو) شوکت او قوت مات کړئ، لومړنی مقصد خو دا وو چې د عربستان خاوره د مشرکانو له وجود څخه بیخي پاکه شي، لیکن په دغه وخت کې د یهودو او نصاراوو په حصه کې دومره خبره لازمه او تر نظر لاندې وه؛ چې دوی د اسلام په مقابل کې د زور او قوت خاوندان نشي، او د اسلام د خپرېدو (خورېدو) او ترقی په لاره کې خنډ نشي، نو ځکه اجازه ورکړې شوه؛ که دغه کتابیان تر لاس لاندې رعیت پاتې کیږي، او جزیه ورکول قبلوي؛ نو هیڅ مضایقه نشته، قبول یې کړئ، نو په دغه وخت کې دې اسلامي حکومت د دوی د ځان او مال ساتنه وکړي، که نه د دوی علاج هم همغه دی، چې د مشرکانو وو (یعنې جهاد او قتال).

﴿وَقَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصَارَى الْمَسِيحُ ابْنُ اللَّهِ ذَٰلِكَ قَوْلُهُم بِأَفْوَاهِهِمْ يُضَاهِئُونَ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَبْلُ قَاتَلَهُمُ اللَّهُ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ۝٣٠﴾

او وایي یهودان چې عُزیر ځوی د الله دی، او وایي نصرانیان چې مسیح ځوی د الله دی، دغه ځېي (بېکاره) وینا د دوی ده په خولو خپلو سره (چې وایي یې بې دلیله)، مشابه ده (خبره) د دوی له خبرو د هغو کسانو سره چې کافران شو وو پخوا (له دوی یعنې پلرونه د دوی)، هلاک دې کړي دوی لره الله چې څرنګه ګرځولی شي دوی (له سمې لارې څخه).

تفسیر: له روایاتو څخه معلومیږي چې په دغه وخت کې د ځینو یهودانو داسې عقیده وه، چې عُزیر علیه السلام د الله تعالی ځوی دی، لیکن دغه عقیده د عامو یهودانو نه وه، بلکه په وروستیو زمانو کې خو ځینو علماوو لیکلي دي، چې اوس هیڅ یو یهودي پر دغې عقیدې نه دی پاتې، که د نبي صلی الله علیه وسلم په عهد کې د یهودانو کومه فرقه په دې خبرې قائله نه وي؛ نو ضرور به په دغه وخت کې یهودانو د قرآن د حکایت تکذیب کړی وی، لکه چې د ﴿اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ﴾ له اورېدلو څخه «عدي بن حاتم» اعتراض کړی وو، چې «هیڅوک احبار او رُهبان رب نه ګڼي»، چې د هغه ځواب نبي کریم صلی الله علیه وسلم داسې ورکړ چې وروسته راغي، یهودو ته د دې عقیدې نسبت کول چې عُزیر علیه السلام د الله ځوی دی، او له دې خبرې څخه د هغوی د اعتراض او انکار هیڅېرې نه منقولېدل د دې خبرې دلیل دی، چې ضرور په هغه وخت کې د دغسې عقیدې خاوندان موجود وو.

هو ! همغسې چې د زمانې په تېرېدو ډېر مذاهب او فرقې محوه شوي او له منځه تللي دي، که دغه عقیده هم له منځه تللې وي؛ نو لرې خبره نه ده، یو ډېر ثقه بزرګ حاجي امیر شاه خان وویل چې: د «فلسطین» او نورو ځایونو په سیاحت کې ځما ملاقات له داسې یهودانو سره شوی دی، چې هغوی ته به یې د دې رنګ عقائدو په نسبت «عُزیري» ویل، والله أعلم.

﴿يُضَاهِئُونَ قَوْلَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَبْلُ﴾: «مشابه ده خبره د دوی له خبرو د هغو کسانو سره چې کافران شوي وو پخوا له دوی»، یعنې د مسیح ابنیت «ځویتوب» او الوهیت «خدایي» او نورې عقیدې د پخوانیو مشرکینو (چې د دوی پلرونه وو) له عقیدې سره مشابه دي، بلکه د هغوی په تقلید یې دغه عقیده غوره کړېده، لکه چې په (۶ جزء د المائدې سورت په (۱۶) او (۱۷) آیت (۳) رکوع) په تفسیر کې مو نقل کړی دی.

﴿قَاتَلَهُمُ اللَّهُ﴾ الآيه ـ «هلاك دې کړي دوی لره الله» يا «لعنت د الله دې وي پر دوی چې څرنګه ګرځولی شي دوی له لارې سمې څخه، يا چې څرنګه چپ کړی شوي دي له لارې د حق نه»، يعنې الله تعالى دې دوی ووژني، او غارت دې کړي «او لعنت دې پرې نازل کړي»، چې سره د توحيد د صافۍ او زوروړې رڼا د رسېدلو څخه بيا هم دوی د تيارو په لوري ولې درومي؟.

إِتَّخَذُوٓا۟ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ وَٱلْمَسِيحَ ٱبْنَ مَرْيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓا۟ إِلَّا لِيَعْبُدُوٓا۟ إِلَٰهًا وَٰحِدًا ۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۳۱﴾

نيولي دي دغو (کتابيانو) عالمان خپل او عابدان خپل معبودان بې له الله (چې متابعت يې کوي په تحليل او تحريم کې) او مسيح ځوی د مريمې (هم په الوهيت نيسي، چې د الله ځوی يې بولي)، حال دا چې امر (حکم) نه دی شوی دوی ته (په تورات او انجيل کې) مګر د دې چې عبادت وکړي دوی د معبود يوه، چې نشته هيڅ بر حق معبود مګر خو همدی دی، پاکې ده الله لره له هغه شي نه چې شريکوي دوی (هغه د الله سره).

تفسير: هره مسئله به چې د دوی علماوو او مشائخو له خپله ځانه جوړوله، که حلالو ته يې حرام يا حرامو ته يې حلال هم ويل؛ هغوی به همغه سند ګاڼه، او داسې خيال به يې کولو، چې بس هم دغه مونږ د الله تعالى له پوښتنې څخه ژغوري (ساتي)، او د آسماني کتابونو له قبلولو سره يې هيڅ علاقه او معامله نه لرله، او يواځې د احبارو او راهبانو پر حکمونو به يې عمل کاوه.

او د دغو عالمانو او عابدانو حال او قال، عمل او کار داسې وو؛ چې د لږ دنيوي مال د فائدې او د جاه او رتبې په مقابل کې به يې شرعي حکمونه بدلول، لکه چې له دوو آيتونو څخه وروسته مذکور دي، نو د الله تعالى کار (يعنې د حلالو او حرامو تشريع) يې علماوو او مشائخو ته ورکړی وو، نو په دغه ملحوظ يې وفرمايل چې: دوی خپل عالمان او شيخان معبودان درولي وو.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم د «عدي بن حاتم» د اعتراض د ځواب ورکولو په ضمن کې هم داسې تشريح فرمايلې وه، او له حُذيفه رضي الله تعالى عنه څخه همداسې منقول دي، شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «د عالم قول تر هغه پورې عوامو ته سند دی؛ چې د شرعې له مخې خبرې کوي، کله چې معلومه شي، چې هغه عالم له خپله ځانه يا د طمعې يا د نورو شيانو له کبله (وجې) خبرې کوي، نو بيا د ده قول سند نه دی.

يُرِيدُونَ أَن يُطْفِـُٔوا۟ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ وَيَأْبَى ٱللَّهُ إِلَّآ أَن يُتِمَّ نُورَهُۥ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴿۳۲﴾

اراده لري دغه (کتابيان) دا چې مړ کړي نور (رڼا د شريعت) د الله په خولو خپلو، او منع راوړي (نه خوښوي) الله مګر دا چې پوره کړي نور (رڼا) خپله (چې شعلې يې په هر طرف خورې شي)، او اګر که بد ګڼي (دا کار) کافران.

تفسير: يعنې لکه چې د خالص توحيد او د اسلام د لمر پلوشې را څرګندې شوي دي، بيا نو دغه ګډې وډې خبرې او د شرک دعوی چېرې پر مخ تللی او خورېدلی شي، دا چې څوک کوښښ کوي، چې بې حقيقته او بې معنی خبرې جوړې کړي، او د بيځايه بحثونو او مجادلو په زور د حق نور (رڼا) بې رونقه (تته) کړي؛ داسې مثال لري چې کوم ناپوه سړی غواړي د خولې په پوکي د لمر يا د سپوږمۍ رڼا مړه يا تته کړي، هر څومره که دې وسوځي، او خپل ځان نيني نيني کړي؛ مګر بيا هم د الله د دين نور په پوره ډول سره خورېږي، او خپلو پلوشو او وړانګو سره نړۍ روښانوي.

هُوَ الَّذِيٓ أَرْسَلَ رَسُولَهُۥ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُۥ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِۦ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ٣٣

الله هغه ذات دی چې لیږلی یې دی رسول خپل (محمد) په هدایت سره (چې قرآن دی) او په دین حق سره (چې اسلام دی) لپاره د دې چې غالب کړي دغه (دین) پر نورو ټولو (اګر که آسماني هم وي) او اګر که بد ګڼي (دا کار) مشرکان.

تفسیر: پر نورو ادیانو د اسلام غلبه د معقولیت، حجّت، برهان او دلیل په اعتبار ده، دغه خو په هره زمانه کې لله الحمد په ښکاره ډول سره حاصله ده، باقي د حکومت او سلطنت په اعتبار دغه غلبه تر هغه وخته پورې حاصله وه، او وي به؛ چې مسلمانان پر اسلامي اصولو باندې په ښه شان عاملان، او د ایمان او تقوی پر لاره ټینګ او سم روان، او په جهاد في سبیل الله کې ثابت وو، او وي، او د حق دین غلبه چې باطل ادیان مغلوب، اوبیخي یې د هستی له صفحې څخه محوه کړي، نو دغه د مسیح علیه السلام د نزوله وروسته چې قیامت نژدې کیږي، کېدونکی دی.

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَٰلَ النَّاسِ بِالْبَٰطِلِ وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ

ای هغو کسان چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) بېشکه ډېر له عالمانو (یهودانو) او عابدانو (د نصرانیانو) خامخا خوري دوی مالونه د خلقو په باطل (رشوت) او منع کوي (خلق) له لارې د الله څخه،

تفسیر: یعنې روپۍ اخلي، شرعي احکام او الهي اخبار بدلوي، او له بل لوري عوامّ الناس (لکه چې پخوا مو ولیکل) دوی ته د الوهیت مرتبه ورکوي، دغه حال مسلمانانو ته اوروليٰ شي، چې مسلمانان هوښیار او خبردار شي، چې د امتونو او د اقوامو د خرابۍ او تباهۍ ډېر لوی سبب د درېو جماعتونو خرابي او ګمراهي او د خپلو فرائضو پرېښودل دي: (۱): علماء. (۲): مشایخ. (۳): أغنیاء ـ رؤساء، له دوی څخه د دوو ډلو ذکر پخوا له دې نه تېر شو، د درېم جماعت «رؤساوو» ذکر وروسته راځي، ابن المبارک څومره ښه ویلي دي: «وهل أفسد الدين إلا الملوك و أحبار سوء ورهبانها».

وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَبَشِّرْهُم بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ٣٤

او هغه کسان چې خزانه کوي سره زر او سپین زر او نه لګوي هغه په لاره د الله کې (د دین د ترقی لپاره)؛ نو زیری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره.

تفسیر: هغه خلق چې دولت او ثروت ټولوي، اګر که په حلاله طریقه سره هم وي، خو د الله تعالی په لاره کې یې نه صرفوي، «مثلا زکات نه ورکوي، واجبه حقوق ترې نه باسي».

يَوْمَ يُحْمَىٰ عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَىٰ بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَٰذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنتُمْ تَكْنِزُونَ ٣٥

په هغې ورځې چې سختې سرې به کړی شي دغه خزانې په اور د جهنّم (دوزخ) کې؛ نو داغلي به شي په هغه سره وچولي (تندي) د دوی، او اړخونه د دوی، او شاګانې د دوی (او ویلی به شي ورته): دا هغه شی دی چې خزانه کړی وه تاسې لپاره د نفسونو (ځانونو) خپلو؛ نو وڅکئ تاسې (خوند سزا د) هغه (مال) چې وئ تاسې چې خزانه کاوه به مو (په دنیا کې اوس درته بلا شوه په عُقبا کې).

تفسیر: کله چې بخیل دولتمن ته د الله جل جلاله په لاره کې د مال د لګولو په نسبت څه وویل شي؛ نو د ده وچولي (تندي) کې ګونځې پیدا کیږي، او که ډېر ورته ووایې؛ نو اعراض کوي، او مخ ترې اړوي، او خپل اړخ ورګرځوي، او که په دغه سره هم خلاص نشو، نو خپله شا ورګرځوي، او خپله مخه نیسي او ځي، نو ځکه سپین او سره زر (طلا او نقره) سره کوي (تودوي)، او د ده همدغه درې ځایونه (وچولی (تندی)، اړخ، شا) پرې داغوي، چې په دې وسیلې سره د خپل د هغه ټول کړي مال خوند او مزه په ښه شان سره وڅکي، او خپله سزا په ښه شان سره ومومي.

إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا فِي كِتَابِ اللَّهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ۚ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ ۚ فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ ۚ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٦﴾

بېشکه چې مقدار (شمار) د میاشتو (چې معتبر دی) په نزد د الله کې دوولس میاشتې دي په کتاب د الله (لوح محفوظ) کې هغه ورځ (وخت) چې پیدا کړي يې دي آسمانونه او ځمکه د هغو (له جملې) ځنې څلور میاشتې محرمې دي، دغه (حساب یاتحریم) دین دی سم، نو مه کوئ ظلم په دغو کې په ځانونو خپلو (په کولو د ګناه)، او جنګونه کوئ تاسې (ای مؤمنانو) له مشرکانو سره ټول (له ټرمې (سیلمې) او په هر حال کې) لکه چې جنګونه کوي دوی له تاسې سره ټول له ټرمې (سیلمې)، او پوه شئ چې بېشکه الله سره له پرهېزګارانو دی (په ساتنه، مرسته (مدد)، او ثواب ورکولو سره).

تفسیر: په عربو کې له قدیمه دغه دود او دستور جاري دی، چې د کال د دوولسو میاشتو ځنې په څلورو میاشتو کې وینې تویول، جدال او قتال قطعا بندیږي، چې دغو ته بـه یـې «أشهر الحرم ـ محرم الحرام او رجب المرجّب ویلې»، چې په هغو کې به یې د حج او عمرې او تجارتي کارونو لپاره په امن او امان، آزادۍ او اطمینان سره سفر کاوه، هیڅ یو سړي به په دغو میاشتو کې د خپل پلار په قاتل باندې به هم تعرض نه کاوه.

بلکه ځینو عالمانو لیکلي دي چې: اصلا په ابراهیمي ملت کې دغه څلور میاشتې (أشهر الحرم) مقررې شوې وې، له اسلامه یو څه موده مخکې کله چې د عربو وحشت او جهالت له حده تېر شوی وو، او یو تر بله په جدال او قتال کې مشغول وو، او د ځینو قبائلو د وحشت او سبعیت او د انتقام جذبات د هیڅ یو آسماني یا مځکني قانون تابع نه وو؛ نو د «نسيء» رسم یې وایسته، یعنې څه وخت به چې کومې زوروري قبیلې په اشهر الحرم کې د قتال اراده لرله، نو د هغې مشر به داسې اعلان کاوه، چې سږ کال مونږ دغه «محرّم» له «أشهر الحُرُم» څخه راباسو، او د هغه په ځای د «صفرې» میاشت حرامه ګرځوو، او په بل کال کې به یې ویل چې: سږ کال لکه پخوا مونږ «محرّم» حرام او «صفره» حلاله ګڼو، او په دغه ډول به یې په هر کال کې د څلورو میاشتو شمېر پوره کاوه، لیکن د هغو په تعیین کې به یې له خپلې غوښتنې سره سم تغییر او تبدیل کاوه.

د ابن کثیر «رحمه الله» له تحقیقه سره سم د «نسيء ـ د میاشتو د وړاندې وروسته کولو» رسم یواځې په «محرّم» او په «صفره» کې کېده، او د هغه صورت همغه وو، چې مخکې ذکر شو، او ﴿إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِندَ اللَّهِ﴾ الآیه ـ د دغه د ردّ تمهید دی، یعنې له نن ورځې څخه نه بلکې له هغه وخته راهیسې چې الله تعالی آسمان او ځمکه پیدا کړېده، د الله تعالی له جانبه د ډېرو شرعي احکامو د جاري کولو په غرض د هر کال لپاره دوولس میاشتې مقررې شوي دي، چې په هغو کې څلور میاشتې «أشهر الحرم ـ د ادب میاشتې» دي، او په هغو کې له ګناه او ظلم څخه د ځان ساتلو زیات فکر او ډېر اهتمام پکار دی، او همدغه د ابراهیم علیه السلام سم دین دی.

﴿فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً﴾ الآیه - «نو مه کوئ تاسې ظلم په دغو کې پر نفسونو ځانونو خپلو په کولو د ګناه، او جنګونه کوئ تاسې ای مؤمنانو له مشرکانو سره ټول له څرمې (سېلمې) او په هر حال کې الخ».

شاه صاحب لیکي چې: «له دې آیت ځنې دغه مسئله څرګندیږي، چې له کافرانو سره هر وخت جنګېدل روا دي، لکه چې د «تبوک» غزا چې ذکر یې وروسته راځي؛ د رجب المرجّب په میاشت کې شوې ده»، او یو له بل سره ظلم او تېری کول د تل لپاره ګناه ده، او په دغو میاشتو کې لا زیاته ګناه لري، د زیاترو علماوو همدغه رایه ده، لیکن بهتره خو دا ده، که کافر د دغو میاشتو ادب وکړي؛ نو ښایي چې مونږ هم له هغه سره لومړی په جنګ پیل (شروع) ونه کړو.

إِنَّمَا النَّسِيءُ زِيَادَةٌ فِي الْكُفْرِ يُضَلُّ بِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُحِلُّونَهُ عَامًا وَيُحَرِّمُونَهُ عَامًا لِيُوَاطِئُوا عِدَّةَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ فَيُحِلُّوا مَا حَرَّمَ اللَّهُ زُيِّنَ لَهُمْ سُوءُ أَعْمَالِهِمْ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿۳۷﴾

بېشکه چې دغه تاخیر (د حرمت د یوې میاشتې بلې میاشتې ته) ډېروالی دی په کفر کې، چې ګمراه کولی شي په دې (عمل) سره هغه کسان چې کافران شوي دي، حلالوي دوی دغه (حرامه میاشت) یو کال (په کې جنګ کوي)، او حراموي دوی (پرېږدي په حرمت) دغه (حرامه میاشت) بل کال، (او دغه د نسيء عمل کوي) لپاره د دې چې پوره کړي دوی شمار د هغو میاشتو چې حرامې کړي دي الله، نو حلالوي (په زعم او عمل خپل) هغه میاشتې چې حرامې کړي دي الله، ښایسته کړی شوي دي دوی ته ناکاره عملونه د دوی، او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم کافرانو ته.

تفسیر: یعنې کافران خراب کار ښه ګڼي، کله چې د دوی پوهه منقلبه او چپه شي؛ نو د نېکۍ سمه صافه لاره به له کومه مومي؟ په دغه آیت کې د «نسيء» د رسم ذکر چې راغلی دی، د هغه تفصیل په هغه تفسیر کې ولیکل شو چې: د ﴿ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ﴾ تر آیت لاندې شوی دی.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُم بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿۳۸﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو !) څه باعث دي په تاسې کله چې وویل شي تاسې ته چې ووځئ تاسې په لاره د الله کې (غزا ته) درانه (او مائل) کېږئ ځمکې ته (او غزا ته نه ځئ)، آیا راضي شوي یئ تاسې په دې حیات دنیوي (ژوندون لږ خسیس تېرېدونکي) لـه (نعمتونـو) د آخرت نه؟ او نه دي نفع اخیستل د دې حیات دنیوي (ژوندون لږ خسیس) په (مقابـل د نعمتونو د) آخرت کې مګر لږ (حقیر) دي.

تفسیر: د مکې معظمې د فتحې او د «حنین» د غزا څخه وروسته د هجرت په نهم کال نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته معلومه شوه، چې د شام نصراني پاچا د «غسان ملک» د «روم» د قیصر په مرسته (مدد) پر مدینې منورې باندې د تعرّض او یرغل (حملې) په فکر کې دی، نو رسول الله مبارک مناسب وګڼل، چې مسلمانان د مخه د هغوی مخه همغلته د «شام» په حدودو کې ونیسي، او پخوا له دې نه چې دوی اسلامي خاورې ته پښه وړاندې کړي، د هغوی مدافعه وکړی شي، نو ځکه رسول الله مبارک په عمومي ډول ګردو مسلمانانو ته حکم وکړ، چې د «جهاد» لپاره تیار شئ !، سخته تودوخه او قحطي وه، خرماوې (کجورې) پخېدو ته نژدې شوې وې، سیورې ډېر ښه لګېده، نو په دغسې وخت دومره اوږده مسافه پرې کول او نه یواځې د «غسان» له پاچا، بلکه د روم د قیصر د ډېرو منظمو او مجهزو (تیارو) لښکرو سره د اسلامي مرکز څخه لرې، د هغه لوی غلیم (دښمن) په خاوره کې جګړه کول کوم آسان امر او د لوبو کار نه وو.

نبي كريم صلى الله عليه وسلم نژدې له (۳۰۰۰۰) تكړه مجاهدينو سره د «شام» د سرحداتو په لوري رهي (روان) شول، او د «تبوك» په مقام كې يې سنګرونه ونيول، او د «روم» د قيصر په نامه يې يو مبارك ليك واستولو، او د اسلام په لوري يې ورته دعوت وركړ، د رسول الله مبارك مقدّس پيغام د قيصر په زړه كې ځاى ونيو، مګر د قيصر قوم ورسره موافقه ونه كړه، نو ځكه د اسلام له قبوله محروم پاتې شو.

كله چې د شام خلق د رسول الله صلى الله عليه وسلم له دې ارادې څخه خبر شول، نو دغه خبره يې د «روم» قيصر ته ورښكاره كړه، مګر قيصر له هغوى سره مرسته ونه كړه، نو دغو خلقو د مسلمانانو اطاعت وكړ، او اسلام ته ايل (مائل) شول، مګر اسلام يې رانه ووړ، لږ څه وروسته رسول الله مبارك وفات شو، او د فاروق اعظم رضي الله تعالى عنه په خلافت كې د «شام» ګرد ملكونه د مسلمانانو په لاسونو مفتوح او ونيول شول.

كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د «تبوك» څخه غالب او منصور بېرته تشريف راووړ، الله تعالى په ټولو لويو لويو سلطنتونو د اسلام د رُعب شهرت وغورځاوه، او د مدينې منورې منافقان ډېر زيات فضيحت او رسوا شول.

په دغه آيت كې مسلمانانو ته ډېر زيات تشويق، ترغيب، تحضيض وركړى شوى دى، او دا يې ښكاره كړېده، چې د لږ څه عيش او آرام لپاره جهاد پرېښودل ګواكې له لوړې څخه د ژورې په لوري له لوېدلو سره مرادف وي، د صادق مؤمن په نظر كې د دنيا عيش او آرام د آخرت په مقابل كې هيڅ اهميت او وقعت ښايي ونه لري، په حديث كې راغلي دي، كه د الله تعالى په نزد د دنيا وقعت (قدر) د ماشي د وزر په اندازه وى، نو هيڅ يو كافر ته به يې يو غړپ اوبه هم نه وركولې.

إِلَّا تَنفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا ۗ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾

كه ونه وځئ تاسې (غزا ته او د رسول الله سره لاړ نشئ)؛ نو په عذاب به كړي الله تاسې په عذاب دردناك سره، او بدل به راولي (بل) قوم چې غير له تاسې وي، او نه به رسوئ ضرر تاسې دغه الله (يا رسول الله) ته د هيڅ شي، او الله پر هر شي ښه قادر دى.

إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا ۖ فَأَنزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَىٰ ۗ وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ۗ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٤٠﴾

كه ونه كړئ تاسې مرسته (مدد) له دغه (رسول الله) سره (نو الله به ورسره مرسته وكړي ځكه چې) پس په تحقيق مرسته (مدد) فرمايلى وه له دغه (رسول الله) سره الله؛ كله چې راوويست دى (له مكې) هغو كسانو چې كافران شوي وو، حال دا چې دى دويم د دوو وو، كله چې دوى دواړه په غار كې وو، كله چې ويل (محمد) ملګري خپل (ابو بكر صديق) ته: مه خپه كېږه، بېشكه چې الله له مونږ سره دى (په ساتنه، ثواب وركولو او نصرت كې)؛ نو نازل كړ (راولېږه) الله تسكين (رحمت ډاډينه) خپل په دغه (محمد يا صّديق)، او تاييد وفرمايه (الله) د رسول الله په (داسې) لښكرو سره چې نه لېدلې تاسو هغوى، او وګرځوله الله كلمه د هغو كسانو چې كافران شوي دي (چې شرك يا د كفر دعوت دى) ښكته، او كلمه د الله (توحيد او د اسلام دعوت) همدغه ده لوړه غالبه (همېشه)، او الله ښه غالب قوي دى (د احكامو په انفاذ) ښه حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي).

تفسير: يعنې که فرضاً تاسې نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره مرسته ونه کړئ؛ باک نشته، د رسول الله مرسته او برى پر تاسې موقوف نه دى، پخوا له دې نه يو داسې وخت هم تېر شوى دى، چې پرته له يو يارغار څخه بل هيڅوک له ده سره نه وو، څو تنه نور مسلمانان چې وو، دوى هم د مکيانو له ظلمونو څخه په تنګ شوي وو، او هجرت يې کړى وو، بالآخر پخپله په رسول الله صلی الله عليه وسلم هم د هجرت حکم وشو.

د مشرکانو وروستنى مشوره او جرګه پر دغې خبرې غوټه شوې وه چې: «له هرې قبيلې څخه دې يو يو ځلمى منتخب شي ! او هغوى ټول دې لاسونه سره يو کړي، او په يوه وخت کې دې په خپلو تورو پر محمد باندې ګزارونه وکړي، څو چې د محمد صلی الله عليه وسلم له وژلو نه پر ټولو باندې ديت واوړي، او ګرد قومونه هغه ديت په تقسيم سره ورکړي، او د بني هاشمو له لاسه به دا ونشي چې د محمد صلی الله د وژلو د انتقام له کبله د عربو د ګردو قبائلو سره جنګ وکړي، او د ګرد عربستان دښمني ځان ته وګټي، او قصاص پرې واخلي.

په هغه شپه کې چې د دغو ناپاکو پلمو (منصوبو) د عملي کېدلو لپاره تجويزونو جريان درلود (لرلو)، رسول الله صلی الله عليه وسلم علي رضی الله عنه ته امر وکړ، چې د دوى پر بستره باندې ويده شي، او مامور شو، چې د خلقو هغه امانتونه چې د رسول الله کره ايښودل شوي وو؛ په ډېر احتياط د هغو خاوندانو ته ورسوي، علي رضي الله تعالی عنه ته يې تسلي ورکړه، چې ته په ډېره ډاډينه او اطمينان سره ځما په بستره څمله، او يقين ولره چې ستا يوه ويښته ته به هم څه زيان او ضرر ونه رسيږي.

وروسته له دې نه رسول الله صلی الله عليه وسلم په خپله د ظالمانو د هجوم له منځه په داسې حال کې ووت، چې: «شاهت الوجوه» يې ويل، او د دوى په سترګو کې يې خاورې شيندلې، او ابو بکر الصديق رضي الله تعالی عنه يې له خپل ځان سره ملګرې کړ، او له مکې معظمې څنې څو ميله لرې لاړ، او د «ثور» په غار کې يې (چې سرى په نيم ساعت کې له مکې معظمې نه هلته ورسيږي، او پر يوه لوړ غره باندې واقع دى)، ځاى ونيوه، دوى تر دريو ورځو پورې په دغه غار کې اقامت وفرمايه، او وروسته له هغه د مدينې منورې په لورې روان شول، او په سلامتي او عافيت سره هلته ورسېدل.

ببشکه د کارونو په انجام کې د الله تعالی کلمه عُليا کيږي، او الله جل جلاله پر هر شي غالب او قوي دى، او د پاک الله هيڅ يو کار له حکمت څخه خالي نه دى.

اِنْفِرُوْا خِفَافًا وَّثِقَالًا وَّجَاهِدُوْا بِاَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ۝۴۱

ځئ تاسې (غزا ته) حال دا چې سپک اوسئ او درانه او جهاد کوئ تاسې په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره د الله کې (د دين د ترقي لپاره)، دغه (تګ غزا ته) خير بهتر دى تاسې ته که يئ تاسې چې پوهېږئ (په خپله ګټه (فائده) او تاوان).

تفسير: ﴿خِفَافًا وَّثِقَالًا﴾ يعنې سواره او پلي (پياده)، ماړه او عاجزان، زاړه او ځلميان، (سپک او درانه، روغ او رنځوران، بې وسلې او وسله والا، خواران او چاخ، مريونه او اصيلان، بې ښځې او د ښځو خاوندان) په هر حال کې چې وئ؛ ښايي چې غزا ته ووځئ ! او د عمومي لښکر کشۍ په وخت کې هيڅ يو عذر او پلمه (بهانه) مه وړاندې کوئ ! «او غزا کوئ په مالونو خپلو سره په توښه او په وسله او په ځانونو خپلو چې ځان ربړوئ لپاره د اعلاء د «کلمة الله» ځکه چې دغه ستاسې تګ غزا ته ډېر غوره دى تاسې ته»، يعنې هم له دنيوي او هم له اخروي حيثه.

لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَّاتَّبَعُوكَ وَلَٰكِن بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ ۚ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنفُسَهُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿٤٢﴾

که وی مال نژدې (آسان) او سفر سهل (منځني)؛ نو خامخا متابعت به کړی وو دوی ستا، ولیکن لرې شوی دی په دوی باندې هغه مسافه (نو ځکه یې مخالفت وکړ)، او ژر به قسمونه وکړي منافقان په الله: که طاقت وی ځمونږ (د سفر)؛ نو خامخا به وتلي وو مونږ له تاسې سره، هلاکوي دوی نفسونه خپل (د دروغجنو په قسمونو)، او الله عالم دی چې بېشکه دوی هرومرو (خامخا) دروغجنان دي (په دې اظهار کې).

عَفَا اللَّهُ عَنكَ لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ ﴿٤٣﴾

عفوه وکړه الله له تا نه، د څه لپاره اذن (اجازه) ورکړه تا دوی ته (د وروسته پاتې کېدلو او ولې دې پرې نښودل) تر هغه پورې چې ښکاره شوي وی تا ته هغه کسان چې رښتیني دي (په دغه عذر کې) او معلوم کړي وې تا دروغجنان.

تفسیر: منافقین په دروغو سره عذرونه وړاندې کوي، کله چې دوی د مدینې منورې د پاتې کېدلو اجازه له تا څخه غواړي؛ نو تاسې د دوی له مکر او کید او نفاق څخه سترګې پټوئ، او داسې ګڼئ چې د هغوی په رفاقت او ملګرتوب کې پرته (علاوه) له فساده بل هیڅ کومه ښېګڼه (نفع) او ګټه (فائده) نه ده متصوره، او د همدې له امله (وجې) تاسې هغوی ته اجازه ورکړه، نو پاک الله جل جلاله دغه وفرمایل چې: که تاسې دوی ته اجازه نه وی ورکړې؛ نو هغه به ډېره بهتره او ښه وه، ځکه چې هلته به ظاهره کېده چې د دوی نه ورتګ ستاسې په اجازه پورې موقوف نه وو، بلکه دوی ته د ورتګ توفیق له سره نه وو، هو ! ستاسې په مخ کې به د دوی رښتیا او دروغ ښکاره کېدل، نو په اجازه ورکولو کې هیڅ ګناه نه وه، خو اجازه نه ورکول د حاضرو مصالحو په اعتبار زیات موزون وو، نو د دغه اعلی او اکمل صورت د ترک له سببه یې خطاب په ﴿عَفَا اللَّهُ عَنكَ﴾ سره شروع کړ.

دا خبره ضروري نه ده، چې د عفوې لفظ خامخا د ګناه په مقابل کې استعمالیږي، ځینو محققینو د ﴿عَفَا اللَّهُ عَنكَ﴾ جمله لکه چې د عربو محاوره ده، د کلام په سر کې یواځې د دعا او تعظیم لپاره بللې ده، مګر له اسلافو څخه هغه څه منقول دي، چې مخکې مو بیان کړل، او د ﴿لِمَ أَذِنتَ لَهُمْ﴾ لفظ د هغه تأیید کوي، والله أعلم.

لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَن يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ ﴿٤٤﴾ إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ ﴿٤٥﴾

نه غواړي اجازه له تا نه هغه کسان چې مؤمنان دي په الله او په ورځې آخرې (د قیامت په پټه او ښکاره په وروسته پاتې کېدلو له دې نه) چې جهاد وکړي دوی په مالونو خپلو او ځانونو خپلو سره، او الله ښه عالم دی په پرهېزګارانو (ځان ساتونکو له بېرته پاتې کېدو څخه). بېشکه همدا خبره ده چې اجازه غواړي له تا نه (ای محمده ! د تخلّف) هغه کسان چې ایمان نه لري (په پټه) په الله او پر ورځې آخرې باندې (چې قیامت دی)، او چې

شکمن دي زړونه د دوی (د دین په حقانیت کې)، نو دوی په شک خپل کې سرګردانه (او متحیره دي).

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې په زړونو کې یې د ایمان او تقوی نور او رڼا ده؛ د هغوی شان دا نه دی چې له جهاده د ځان ژغورنې (محفوظونې) لپاره د مسابقې په ډول دغسې اجازه وغواړي، په بېحیایی سره له جهاده د ځان ژغورنې (ساتنې) اجازه غوښتل د هغو کسانو دود او دستور دی؛ چې د الله تعالی جل جلاله په وعدو یقین نه لري، او په اخروي ژوندون یې څه باور نه وي، او د الله تعالی جل جلاله بشارتونو ته چې د اسلام او مسلمانانو د غلبې او بري په نسبت شوي دي؛ تل د شک په نظر ګوري.

وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَٰكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ ﴿٤٦﴾

او که اراده وی د دوی د وتلو (غزا ته له تا سره)؛ نو هرومرو (خامخا) تیار کړی به وو دوی لپاره د وتلو غزا ته څه اسباب د تیاری، ولیکن نه وو غوره کړي الله پورته کېدل د دوی (غزا ته)، نو سست کړل (الله) دوی، او وویل شول دوی ته چې کېنئ تاسې له (کور) کېناستونکیو (ښځو، هلکانو، سپینږیرو) سره.

لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ

نو که وتلي وی دغه (منافقان) په (لښکر د) تاسې کې؛ نو نه به وو زیات کړي دوی تاسې ته (هیڅ شی) مګر شر، خرابي، فساد او چغلي، او خامخا چابکي به کړې وه دوی په منځ ستاسې کې (په چغلۍ او نورو بدیو کې) حال دا چې غوښتله به دوی تاسې ته فتنه (ستاسې په منځ کې د دښمنۍ په اچولو او کافرانو څخه ستاسې په وېرولو کې).

تفسیر: یعنې که منافقان له تاسې سره تللي وی؛ نو د خپل جبن، بې زړه توب، او وېرې له سببه به یې د نورو غړي هم سست کړي وی، او یو له بل سره به یې د اچولو له امله (وجې) د مسلمانانو په منځ کې جُدایي او تفریق اچول، او د نفاق اچولو په لاره کې به یې کوښښونه کول، او د دروغو افواهاتو په وسیله به یې مسلمانان له دښمنانو څخه وېرول.

وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ ﴿٤٧﴾

او شته په تاسې کې جاسوسان د دوی لپاره (یا اورېدونکي د خبرو د دوی په ضرر ستاسې)، او الله ښه عالم (پوهه) دی په (نیتونو د) ظالمانو.

**تفسیر:** یعنې اوس هم جاسوسان یا ځینې داسې ساده او احمقان په تاسې کې شته، چې د هغوی خبرې اوري، او لږ ډېر ترې متأثر کېږي «ابن کثیر رحمه الله» اګر که دوی هغسې فتنه او فساد نشو اچولی چې د دغو بدانو له وجوده هیله (امید) کېدی شوه، بلکه له تاسې سره د داسې جاسوسانو یو ځای تلل له یوه حیثه مفید دي، څو هغوی په خپلو سترګو د مسلمانانو ټینګ عزم، شجاعت، میړانه (بهادري)، زړورتوب او نور محامد وګوري، او خپلو مشرانو او امیرانو ته یې خبر ورکړی، څو د هغوی پر زړونو یې د مسلمانانو وېره او هیبت هم پیدا او ځای ونیسي.

لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ حَتَّىٰ جَاءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَارِهُونَ ﴿٤٨﴾

خامخا په تحقيق لټولې وه دوی فتنه (خرابي) پخوا (له دې نه په احد او خندق کې)، او سنجولي يې وو تاته ټول فکرونه او چلونه (په تدبيرونو او حيلو ستا د دين د ابطال لپاره) تر هغه پورې چې راغی حق (رښتيا وعده ـ د الله نصرت)، او ظاهر (ښکاره غالب) شو امر (حکم ـ دين) د الله حال دا چې دوی بد ګڼونکي وو (نا رضا په زړه او ظاهراً په اسلام کې داخل شول).

تفسير: د هغوی دغه مکاري او فتنه او شرارت کومه نوې خبره نه وه، له شروع څخه د هغوی وضعيت همداسې وو، د «احد» په جنګ کې هم دغه منافقان له خپلو ډلو سره له لارې څخه بېرته راګرځېدلي وو، او د «خندق» په غزا کې به يې ويل: ﴿يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا﴾ مګر په پای (آخر) کې دوی و ليدل چې حق په څه ډول (طريقه) غلبه او نصرت ومومند؟ او باطل په څه ډول ذليل، سپک، خوار او رسوا شو.

وَمِنْهُم مَّن يَقُولُ ائْذَن لِّي وَلَا تَفْتِنِّي ۚ أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا ۗ وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ ﴿٤٩﴾

او ځيني له دغو (منافقانو) څخه هغه څوک دي چې وايي: اذن (حکم) راکړه ماته (د پاتې کېدلو) او مه اچوه ما په فتنه (ګمراهۍ) کې؛ (نو الله وفرمايل چې): خبردار شئ چې په ګمراهۍ کې (لا له پخوا) لوېدلي دي دوی، او بېشکه چې جهنم (دوزخ) هرومرو (خامخا) محيط (چاپېر کېدونکی) دی په کافرانو.

تفسير: يو لوی منافق «جد بن قيس» وويل چې: ما هم دلته په مدينه منوره کې پرېږدئ، چې د روم ښځې ډېرې ښکلې او پيمخې دي، که څما ستر ګې په هغوی ولګېږي؛ نو ځان به ترې نشم ساتلی، نو هلته مې مه بيايئ چې د ګمراهۍ په کوهي کې ونه لوېږم، نو الله تعالی جل جلاله وفرمايل چې: هغه د دې لفظ په ويلو او په خپل بې زړه توب، وېرې، کفر او په دروغجنې پرهېزګارۍ باندې د پردې په اچولو سره لا د ګمراهۍ په کنده کې لوېدلی دی، او له دې نه وروسته هم د کفر او نفاق په سبب د دوزخ په کنده کې لويدونکی دی.

ځينو دغه آيت د ګردو منافقانو په حق کې ګڼلی دی، او د ﴿وَلَا تَفْتِنِّي﴾ څخه يې مطلب اخيستی دی، چې: «مونږ له خپلو ځانونو سره مه بيايئ ! او د مالونو او نورو شيانو په زيان کې مو مه اخته کوئ !» نو د دې ځواب يې په ﴿أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا﴾ سره ورکړ.

إِن تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۖ وَإِن تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِن قَبْلُ وَيَتَوَلَّوا وَّهُمْ فَرِحُونَ ﴿٥٠﴾

که ورسيږي تاته (په کومه غزا کې لکه بدر) کومه ښېګڼه (لکه نصرت يا غنيمت) نو خفه کوي دوی (دغه نيکي له ډېره حسده)، او که ورسيږي تاته (په کومه غزا کې لکه احد) کومه سختي (لکه زخم يا مرګ)؛ نو وايي دوی: په تحقيق نيولی وو مونږ کار (د احتياط) خپل لا له پخوا څخه (چې جنګ ته لاړ نشو)، او شا ګرځوي دوی (ځي ستا له مجلسه) حال دا چې دوی خوشحاله وي (ستا په مصيبت).

قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَآ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا ۚ هُوَ مَوْلٰىنَا ۚ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾
قُلْ هَلْ تَرَبَّصُوْنَ بِنَآ اِلَّآ اِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ ۗ وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ اَنْ يُّصِيْبَكُمُ اللّٰهُ
بِعَذَابٍ مِّنْ عِنْدِهٖٓ اَوْ بِاَيْدِيْنَا ۖ فَتَرَبَّصُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ مُّتَرَبِّصُوْنَ ﴿۵۲﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) له سره به ونه رسيږي مونږ ته مګر همغه چې ليكلي دي الله ځمونږ لپاره، همدغه (الله) دى مولا (كار جوړوونكى) ځمونږ، او (خاص) پر همدغه الله باندې دې نو توكل (اعتماد) كوي مؤمنان (د هيلو په ترسره كېدلو، د اړتياو «احتياج» په پوره كېدلو او د آفتونو څخه په ژغورلو «محفوظولو) كې. ووايه (اى محمده ! دغو منافقانو ته) چې آيا انتظار كوئ مونږ ته (يعني نه كوئ) مګر د يوې له دوو نېكيو څخه (چې شهادت يا نصرت دى)، او مونږ انتظار كوو تاسې ته (د يوې له دوو بديو څخه) چې ورسوي تاسې ته الله كوم قسم عذاب (خاص) له خپلې خوا (لكه زلزله، يا تندر يا نور)، يا په لاسونو ځمونږ (لكه قتل، شړل، جزيه يا نور)، او انتظار كوئ تاسې بېشكه چې مونږ هم له تاسې سره انتظار كوونكي يو.

قُلْ اَنْفِقُوْا طَوْعًا اَوْ كَرْهًا لَّنْ يُّتَقَبَّلَ مِنْكُمْ ۗ اِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۵۳﴾

ووايه (اى محمده ! منافقانو ته) چې: لګوئ (خپل مالونه په هر شان يې چې لګوئ) په رضا يا په زور (د اسلام) له سره به قبول نه كړى شي له تاسې، بېشكه چې تاسې يئ يو قوم فاسقان (د اسلام له دائرې نه وتونكي).

تفسير: «جدّ بن قيس» منافق چې د رومي ښځو فتنه يې پلمه (بهانه) كوله؛ دا يې هم ويلي وو چې: «يا رسول الله ! صلى الله عليه وسلم ! زه خپله د (تبوك) جهاد ته نشم تلى، ليكن مالي مرسته (مدد) درسره كولى شم»، نو ځواب يې داسې وركړ چې: د بې اعتقادانو مال نه قبلېږي، په خوښى سره يې لګوئ يا په ناخوښه، ځكه په خوښى سره دالله تعالى جل جلاله په لاره كې د مال لګولو توفيق په دوى كې نشته ! ﴿وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ﴾ خو سره له هغه هم كه بالفرض په خوښى سره څه مال د الله تعالى جل جلاله په لاره كې ولګوي؛ نو الله تعالى جل جلاله هغه نه قبلوي، او سبب يې په وروستني آيت كې راښوول شوى دى.

وَمَا مَنَعَهُمْ اَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقٰتُهُمْ اِلَّآ اَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاللّٰهِ وَبِرَسُوْلِهٖ وَلَا يَاْتُوْنَ الصَّلٰوةَ
اِلَّا وَهُمْ كُسَالٰى وَلَا يُنْفِقُوْنَ اِلَّا وَهُمْ كٰرِهُوْنَ ﴿۵۴﴾

او نه دي منع كړي دوى له دې چې قبول كړى شي له دوى نفقې (وركړې) د دوى (هيڅ شي) مګر همدې خبرې چې: بېشكه دوى كافران شوي دي په الله او په رسول د دغه (الله)، او نه راځي دوى لمانځه ته مګر په دې حال چې دوى سُست وي، او نه لګوي دوى (د الله په لاره كې هيڅ مال) مګر په دې حال كې چې دوى ناخوښه وي.

فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ ۗ اِنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ بِهَا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَتَزْهَقَ اَنْفُسُهُمْ
وَهُمْ كٰفِرُوْنَ ﴿۵۵﴾

نو په تعجب كې دې نه آچوي تا (ډېر) مالونه د دوى او نه (ډېر) اولاد د دوى، (ځكه چې دغه

ګرد (تړول) استدراج دی) بېشکه همدا خبره ده چې اراده لري الله د دې چې عذاب ورکړي دوی ته په سبب د هغو (شیانو) په دغه ژوندانه دنیوي کې، او (په سختی او غم) راووځي ارواح (ساوې) د دوی، حال دا چې دوی کافران وي (او په کفر کې مړه شي).

**تفسیر:** داسې شبهه پیدا کېدی شي؛ هر کله چې دوی دومره مردود دي، نو په مالونو او اولادونو او نورو نعمتونو ولې بریالي (کامیاب) شوي دي؟ نو د هغه ځواب يې ورکړ، چې دغه نعمتونه د هغوی په حق کې لوی عذاب دی، لکه چې یوه خوندوره لذیذه غـذا د روغ رمټ سړي صحت، روغتیا او قوت زیاتوي، او فاسد الاخلاط رنځور هلاک ته ورنژدې کوي، همدغه حال د هغو دنیوي نعمتونو (مالونو، اولادونو او نورو) وګڼئ ! د یوه کافر په حق کې دغه شیان د هغوی د بدو مزاجونو له امله د هلاهلو زهرو په شان دي.

څرنګه چې کافران د دنیا په حرص او مینه کې غرق او ډوب وي؛ نو ځکه لومړی د هغې په تړلولو کې بې حده ربړونه (تکلیفونه) ګالي (برداشت کړي)، بیا که لږ څه زیان وروړسیږي؛ نو څومره مینه او محبت چې له دغو شیانو سره لري؛ هم هغومره غم او درد ور رسیږي، او هیڅ وخت یې د هغه له فکر، اندېښنې او خفګان څخه زړه نه خالي کیږي، نو بیا کله چې مرګ دوی له دغو محبوبو شیانو څنې جلا کوي؛ نو د دغه وخت د صدمې، حسرت او افسوس کولو اټکل ډېر ګران او مشکل کار دی.

وَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ وَمَا هُم مِّنكُمْ وَلَٰكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ ﴿٥٦﴾ لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَأً أَوْ مَغَارَاتٍ أَوْ مُدَّخَلًا لَّوَلَّوْا إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ ﴿٥٧﴾

او قسمونه کوي په الله چې بېشکه دوی خامخا له (ډلې) ستاسې (مسلمانانو) څخه دي، حال دا چې نه دي دوی له (ډلې) ستاسې څخه (د باطني کفر په سبب)، ولیکن دوی (داسې یو) قوم دی؛ چې ویریږي (له تاسې نو ځکه تش په ژبو سره اسلام ښکاره کوي). که ومومي دوی ځای د پناه یا غارونه (چې په کې پټ شي) یا بل کوم ځای د ننوتلو (او د پناه نو) خامخا ګرځیدلي به وو دوی هغه ته حال دا چې دوی به منډې وهلې (له ویرې د مسلمانانو لکه پړي شکولي آسونه چې هیڅ شي به دوی نشو راګرځولی).

وَمِنْهُم مَّن يَلْمِزُكَ فِي الصَّدَقَاتِ فَإِنْ أُعْطُوا مِنْهَا رَضُوا وَإِن لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَا إِذَا هُمْ يَسْخَطُونَ ﴿٥٨﴾

او ځینې له دغو (منافقانو) څخه هغه دي، چې عیب وایي ستا په (تقسیم) د صدقاتو (او غنائمو) کې، نو که ورکړل شي دوی ته (د دوی له غوښتنې سره سم)؛ له هغې څخه راضي کیږي (په دې قسمت سره)، او که ور نه کړی شي دوی ته له هغه څخه (د دوی په غوښتنې)؛ نو هغه وخت دوی په قهریږي.

وَلَوْ أَنَّهُمْ رَضُوا مَا آتَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَقَالُوا حَسْبُنَا اللَّهُ سَيُؤْتِينَا اللَّهُ مِن فَضْلِهِ وَرَسُولُهُ إِنَّا إِلَى اللَّهِ رَاغِبُونَ ﴿٥٩﴾

او که په تحقیق دوی راضي شوي وی په هغه (مقدار د ولجې «غنیمت» او صدقې) چې ورکړي وو دوی ته الله او رسول د دغه (الله)، او ویلي وی دوی: کافي (بس) دی مونږ ته الله، ژر به راکړي مونږ ته الله له فضل (احسان، رحمت) خپل، او رسول د دغه (الله له بل غنیمته) بېشکه

مونږ الله ته رغبت (تمه) کوونکي يو (چې پخپل فضل سره مونږ له صدقاتو بې پروا وګرځوي؛ نو دا به ورته بهتر وو).

**تفسير:** مطلب دا چې نه بنايي دنيوي فاني متاع ته سترګې ونيسي، او لازم دي چې هر انسان يواځې د مهربان الله جل جلاله غوښتونکی وي، او هر هغه ظاهري او باطني دولت چې د الله تعالى جل جلاله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم» له درباره ورته رسيږي؛ په هغه دې خوشاله او ډاډ اوسي.

إِنَّمَا الصَّدَقَٰتُ لِلْفُقَرَآءِ وَالْمَسَٰكِينِ وَالْعَٰمِلِينَ عَلَيْهَا وَالْمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمْ وَفِي الرِّقَابِ وَالْغَٰرِمِينَ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ فَرِيضَةً مِّنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٦٠﴾

بېشکه همدا خبره ده: چې صدقې (زکات صرفيږي) لپاره د فقيرانو او مسکينانو او عاملانو (مقررو) پر هغه (تحصيل د صدقې)، او هغو ته چې الفت (آشنايي) اچولی شي په زړونو د دوی کې (له اسلام سره)، او (صرفيږي) په (خلاصولو د) غاړو (د نادارو مکاتبانو) کې، او پور وړو (تاوان موندونکو)، او (صرفيږي) په لاره د الله کې، او (صرفيږي لپاره د) مسافرانو (چې مال ورسره نه وي)، (مقرراو لازم کړی شوې ده دغه) فريضه (زکات) له (جانبه) د الله (دغو مصارفو لره)، او الله په هر څه ښه پوه او د حکمت خاوند دی.

**تفسير:** څرنګه چې د صدقو په وېش کې په رسول الله صلى الله عليه وسلم طعن شوی وو، نو ځکه خبرداري ورکوي، چې د صدقو طريقه د الله تعالى جل جلاله له جانبه مقرره شوې ده، او پاک الله جل جلاله د صدقو او د نورو د لګښت ځايونه ټاکلي (مقرر کړي) او د هغه فهرست يې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په لاس ورکړی دی، چې له هغه سره يې سم ويشي، او د هيچا د غوښتنې تابع نشي کېدی.

په حديث کې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي: «الله تعالى جل جلاله د صدقو (زکات) د وېش اختيار نبي ته نه دی پرېښی، بلکه بالذات يې پخپله د هغه د لګښت ځايونه ټاکلي (مقرر کړي)، چې دغه اتـه دي:

(۱): فقراء: «چې له هغوی سره څه شی نه وي».

(۲): مساکين «چې له هغوی سره په اندازه د حاجت د دوی څه شی ميسّر نه وي»، ځينو علماوو د فقيرانو او مساکينو تعريف د دې په عکس کړی دی.

(۳): عاملين: «چې د اسلامي حکومت له لوري د صدقو د راټولولو او په نورو خدمتونو او چارو باندې مامور شوی وي».

(۴): مؤلفـة القلوب: «هغه کسان چې د دوی د اسلام راوړلو هيله (اميد) کيږي، يا په اسلام کې کمزوري وي، يا داسې نور »، د اکثرو علماوو په نزد رسول اکرم صلى الله عليه وسلم له وفاته وروسته «مؤلفـة القلوبو» ته د زکات ورکولو حکم نه دی پاتې.

(۵): في الرقاب: «يعني د مريانو د مکاتب والی بدل اداء او آزاد يې کړي، يا يې وپيري (واخلي) او بيا يې آزاد کړي، يا د بنديانو او قيديانو فديه ورکړي، او خوشې يې کړي».

(۶): غارمين: «هغه کسان چې پر دوی کومه حادثه راغلې وي، او د هغې په اثر پور وړي شوي وي، يا د کوم ضمانت يا د نورو عواملو له امله (وجې) تر بار لاندې لوېدلي وي».

(۷): في سبیل الله: «په جهاد او نورو ښو کارونو پسې د تلونکو سره دې مرسته (مدد) وکړی شي».

(۸): ابن السبیل: «د هغه مسافر او پردیسي سره مرسته (مدد) کول چې د سفر په حالت کې د نصابو مالک نه وي، اګر که په خپل کور د مال او شتو خاوند هم وي».

وَمِنْهُمُ الَّذِينَ يُؤْذُونَ النَّبِيَّ وَيَقُولُونَ هُوَ أُذُنٌ قُلْ أُذُنُ خَيْرٍ لَّكُمْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَيُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِينَ وَرَحْمَةٌ لِّلَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦١﴾

او ځینې له دوی هغه کسان دي چې آزار رسوي دوی نبي ته، او وایي چې دغه (رسول ټول) غوږونه دي (چې هره خبره آوري او تصدیق پرې کوي)، ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې دی آورېدونکی د ښېګې (خبرې) ستاسې دی، باور یقین لري دی په (کلام د) الله او باور کوي دی په (خبرو د خالصو) مؤمنانو، او (دی) رحمت دی لپاره د هغو کسانو چې (یوازې یې په ژبه سره ظاهرا) ایمان راوړی دی له تاسې، او هغه کسان چې آزار رسوي رسول الله (محمد) ته؛ مقرر دی دوی ته عذاب دردناک (په آخرت کې).

تفسیر: منافقان به چې په خپلو منځونو کې سره کښېناستل؛ اسلام او د اسلام پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته به یې بد ویل، که چا به هغوی ته وویل چې: داسې خبرې مه کوئ ! هسې نه چې ستاسې دغه خبرې رسول الله صلی الله علیه و سلم ته ورسولی شي، نو دوی به ویل چې: هیڅ پروا نشته، مونږ به د هغه په مخکې د خپلو دغو خبرو د دروغو تأویلونه وکړو، او د خپلو ځانونو پاکي او برائت به ورڅرګند کړو.

ځکه چې هغه خو ټول غوږونه دی، هر خبره چې اوري؛ سمدلاسه یې مني، په خبرو د ده تېرایستل دومره ګران نه دي.

خبره داسې وه چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلې حیا، وقار او کریم النفسی له کبله (وجې) سره له دې چې دروغ به ورته څرګند معلومېدل؛ خو بیا یې هم د هغه د ویونکي پت او عزّت ساته، او نه به یې رسوا کاوه، او احمقانو به داسې ګڼل چې ګواکې رسول الله صلی الله علیه وسلم له سره څمونږ په دغو دروغو نه دی پوهېدلی.

نو الله جل جلاله د دوی ځواب داسې ورکوي: «که دی بیخي غوږ دی، خو ستاسې د خیر او ښېګڼې لپاره دی، د نبي صلی الله علیه وسلم سکوت او اغماض ستاسې پر دروغو خبرو د دې لپاره نه دی؛ چې دوی په رښتیا ستاسې خبرې یقیني او واقعي ګڼي، بلکه د هغوی یقین او باور د الله تعالی جل جلاله او د مؤمنانو پر خبرو دی، هو ! ستاسې په منځ کې د هغو کسانو په حق کې چې د ایمان مدعیان دي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سکوت او اغماض یو قسم رحمت دی، ځکه چې سمدلاسه د هغوی تکذیب نه کوي، او نه یې رسوا کوي، مګر د منافقانو بد کارونه د الله تعالی جل جلاله نه پټ نه دي، نو د سختو سزاوو منتظر اوسئ !».

يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ لِيُرْضُوكُمْ وَاللَّهُ وَرَسُولُهُ أَحَقُّ أَن يُرْضُوهُ إِن كَانُوا مُؤْمِنِينَ ﴿٦٢﴾

قسمونه خوري دوی په الله تاسې ته (چې مونږ منافقان نه یو) لپاره د دې چې راضي کړي دوی تاسې، او الله او رسول د دغه (الله) ډېر حق دار (لایق) دی د دې خبرې چې راضي کړي دغه (منافقان) هغه (رسول الله) که وي دوی ایمان راوړونکي (په حقه سره).

**تفسیر:** شاه صاحب لیکي: «که کوم وخت به رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوی مکر او دغابازي ښکاره کوله، نو دوی به د مسلمانانو په مخکې قسمونه خوړل، چې څمونږ په زړونو کې کومه بده خبره او خراب نیت نه وو، څو مسلمانان له خپلو ځانونو څخه خوښ او د ځان طرفداري کړي، او نه پوهیږي چې دغه چل بازي له الله جل جلاله او له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بیخي نه پکاریږي»، که دوی د ایمان په دعوی کې رښتیني وي؛ نو نور خلق دې پریږدي او یواځې د الله تعالی جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم خوښې او رضا پسې دې ولویږي.

اَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّهٗ مَنْ يُّحَادِدِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَاَنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدًا فِيْهَا ۗ ذٰلِكَ الْخِزْيُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۳﴾

آیا نه دي پوهه شوي دوی په دې چې بېشکه شان دا دی هر څوک چې مخالفت کوي د الله او (مخالفت کوي) د رسول د الله؛ پس بېشکه مقرر دی ده ته اور د دوزخ حال دا چې همېشه به وي دی په دغه دوزخ کې او همدغه (خلود) رسوایي ده ډېره لويه.

**تفسیر:** یعني له هغې رسوایۍ څخه چې د ځان د ژغورلو (ساتلو) له امله (وجې) دوی نفاق اختیار کړی دی، د هغې نه دا رسوایي لویه ده.

يَحْذَرُ الْمُنٰفِقُوْنَ اَنْ تُنَزَّلَ عَلَيْهِمْ سُوْرَةٌ تُنَبِّئُهُمْ بِمَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۗ قُلِ اسْتَهْزِءُوْا ۚ اِنَّ اللّٰهَ مُخْرِجٌ مَّا تَحْذَرُوْنَ ﴿۶۴﴾

ویریږي دغه منافقان له دې نه چې نازل کړی شي پر دغو (مؤمنانو د قرآن داسې یو) سورت چې خبروي دغه (مؤمنان) په هغه (کفر او نفاق) چې په زړونو د دوی کې دی (خو سره له هغه هم استهزاء کوي)، ووایه (ای محمده ! دوی ته توبیخا) چې کوئ تاسې (دغه) مسخرې (چې په سزا به ورسېږئ)، بېشکه چې الله ښکاره کوونکی دی د هغو (خبائثو ستاسې) چې ویرېږئ (له ښکاره کولو نه د هغو).

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ لَيَقُوْلُنَّ اِنَّمَا كُنَّا نَخُوْضُ وَنَلْعَبُ ۗ

او قسم دی خامخا که پوښتنه وکړې ته له دوی نه (چې تاسې ولې استهزاء کوئ په دې حال چې دوی تبوک ته تلل)؟ نو ضرور به وایي خامخا دوی چې: بېشکه همدا خبره ده چې وو مونږ چې مجلس او لوبې مو کولې.

**تفسیر:** د (تبوک) غزا ته د تللو په وخت کې ځینو منافقانو د تمسخر او استهزاء په طریقه داسې وویل: «دغه سړي محمد صلی الله علیه وسلم ته ګورئ ! چې د شام د قصرونو او د روم د ښارونو د فتح کولو خوبونهویني، ده د رومیانو سره جنګ هم د عربو په جنګونو قیاس کړی دی، مونږ یقین لرو چې سبا به ټول د رومیانو په مخ کې لاس تړلي ولاړ یو، دا څمونږ قاریان صحابه رضي الله تعالی عنهم چې خېټه ور، ډارن او دروغجنان دي؛ څرنګه به د رومیانو له منظمو او مسلحو او باتورو لښکرو سره وجنګیږي»، وغیر ذلک من الهفوات.

دوی دا ډول ویناوې د دې لپاره کولې، چې مسلمانان له رومیانو څخه وویروي، او زړونه یې مات کړي، کله چې دغه خبرې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورسېدې، نو دوی منافقان جلب او احضار کړل، او له هغوی څخه یې د دې حقیقت پوښتنه وکړه، دوی وویل: «یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! که رښتیا مو پوښتې؛ نو مونږ دغسې عقیده

کله لرله، خو داسې ويناوې مونږ يواځې د ټوکو او ساعت تېرى په ډول کولې، او غوښتل مو چې په دې توګه په آسانۍ سره مزل ووهو، او لار لنډه شي».

قُلْ أَبِاللَّهِ وَآيَاتِهِ وَرَسُولِهِ كُنتُمْ تَسْتَهْزِئُونَ ﴿٦٥﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته چې) آيا په الله او په آيتونو (حکمونو) د الله او په رسول د الله پورې وئ تاسې چې استهزاء به مو کوله.

تفسير: يعنې آيا د ټوکو او مسخرو او ساعت تېرولو موقع او محک هم دا دى؛ چې د الله تعالى جل جلاله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د هغو په احکامو استهزاء او تمسخر وشي؟ په الله جل جلاله او رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې استهزاء او د الهي احکامو سپکاوى داسې شيان دي، که يواځې په ژبه د ټوکو په ډول هم وې؛ کفر دى، بالخاصه چې د منافقانو له خوا د شرارتونو او د باطني پليتى له امله داسې حرکت صادر شي.

لَا تَعْتَذِرُوا قَدْ كَفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ ۚ إِن نَّعْفُ عَن طَائِفَةٍ مِّنكُمْ نُعَذِّبْ طَائِفَةً بِأَنَّهُمْ كَانُوا مُجْرِمِينَ ﴿٦٦﴾

عذرونه مه کوئ تاسې (مونږ ته په دروغو سره) په تحقيق (ظاهراً هم) کافران شوي يئ (د اسلام په طعن سره) وروسته له (اظهار د) ايمان ستاسې، که عفوه وکړو مونږ له يوې ډلې له تاسې څخه؛ نو ضرور عذاب به (هم) ورکړو بلې ډلې ته په سبب د دې چې دوى بېشکه وو ګناهګاران.

تفسير: يعنې د دروغو له عذره، حيلو، پلمو (تدبيرونو) او بهانو جوړولو څخه هيڅ فائده په لاس نه ورځي، څوک چې د نفاق او استهزاء د سزا وړ (لايق) وي؛ هغه به خامخا ور رسيږي، هو ! که اوس هم څوک د زړه په صدق توبه وکړي، او له خپلو جرمونو څخه لاس واخلي؛ الله تعالى جل جلاله هغه بښي، يا که يې له ابتداء څخه د کفر او نفاق سره له داسې فتنه اچولو او استهزاء څخه ځان ساتلى وي؛ نو هغو ته به د استهزاء او تمسخر سزا نه ورکوله کيږي.

الْمُنَافِقُونَ وَالْمُنَافِقَاتُ بَعْضُهُم مِّن بَعْضٍ ۚ يَأْمُرُونَ بِالْمُنكَرِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمَعْرُوفِ وَيَقْبِضُونَ أَيْدِيَهُمْ ۚ نَسُوا اللَّهَ فَنَسِيَهُمْ ۗ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ﴿٦٧﴾

سړي منافقان او ښځې منافقاتې ځينې د دوى له ځينو نورو دي (او په کفر او نفاق کې ګرد سره يو شان دي)، امر (حکم) کوي پر منکراتو (بديو چې ښيي يې نورو ته)، او منع کوي دوى (خلق) له نېکيو څخه، او کلک نيسي دوى لاسونه خپل (له خيرات او دعا او مناجات نه)، هېر کړى دى دوى الله (او طاعت يې)؛ نو (الله) بې برخې کړي دي دوى (له خپل رحمت نه)، بېشکه چې منافقان همدوى دي فاسقان (يا دوى همدغه وتونکي دي له دائرې د ايمان نه).

تفسير: يعنې له ټولو څخه لوى ياغيان او غاړه غړوونکي نافرمانان هم دغه بد باطنان منافقان دي، چې د دوى نارينه او ښځې سره له دې چې په ژبو د اسلام اظهار کوي، شپه او ورځ په دې هڅه کې دي، چې په هر ډول حيلې او پلمې (تدبيرونه) جوړې کړي، او خلق په خپلو خبرو اترو سره له ښو کارونو څخه بېزاره او بدو کارونو ته يې تيار کړي، د پېسو لګولو په اصلي ځايونو کې خپل لاسونه موټي او کلک نيسي، مطلب دا چې دوى کلمه وايي، ليکن نه د دوى له ژبې چا ته څه خير او ښېګڼه رسيږي او نه له ماله، نو الله تعالى هم بالمقابل هېر کړل، او د هېرولو معامله يې ورسره وکړه.

وَعَدَ اللّٰهُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْمُنٰفِقٰتِ وَالْكُفَّارَ نَارَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ هِيَ حَسْبُهُمْ ۚ وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ۙ﴿۶۸﴾

وعده کړې ده الله له منافقانو سړيو سره او له منافقاتو ښځو سره او له (ټولو) کفارو سره اور د دوزخ تل به وي (دوی) په دغه (دوزخ) کې، همدغه دوزخ بس دی دوی ته (د عذاب او سزا له مخې)، او لعنت کړی دی په دوی الله، او مقرر دی دوی ته عذاب تل مدام (برقرار پاتې کېدونکی).

**تفسیر:** یعنې دغه یوه کافي سزا ده چې وروسته له هغې بلې سزا ته هیڅ ضرورت نه پاتې کیږي.

﴿وَلَعَنَهُمُ اللّٰهُ﴾ : ښايي چې مطلب يې داسې وي، چې په دنيا کې به هم دالله تعالی جل جلاله د لعنت اثر دوی ته برابر رسيږي، يا به دغه جمله د پخوانۍ جملې تاکيد وي، والله أعلم.

كَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْكُمْ قُوَّةً وَّاَكْثَرَ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ؕ فَاسْتَمْتَعُوْا بِخَلَاقِهِمْ

(تاسې ای منافقانو !) په شان د هغو کسانو يئ چې پخوا له تاسې څنې وو، وو هغوی سخت له تاسې له جهته د زوره او زيات له جهته د مالونو او اولادونو، نو نفع واخيسته دوی په برخې خپلې (له دنيوي لذتونو).

**تفسیر:** یعنې د دنیوي خوندونو کومه برخه چې د دوی لپاره مقدّره وه، له هغې څخه يې ګټه (فائده) او د عاقبت هيڅ يو خيال او فکر يې ونه کړ.

فَاسْتَمْتَعْتُمْ بِخَلَاقِكُمْ كَمَا اسْتَمْتَعَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ بِخَلَاقِهِمْ وَخُضْتُمْ كَالَّذِيْ خَاضُوْا ؕ

نو ګټه (فائده) واخيسته تاسې په برخې خپلې لکه چې ګټه (فائده) اخيستې وه هغو کسانو چې پخوا وو له تاسې څخه په برخې خپلې سره، او ډوب شوئ تاسې په باطلو کې په شان دډوبيدلو د هغو کسانو چې ډوب شوي وو په باطلو کې پخوا له تاسې.

**تفسیر:** یعنې تاسې هم لکه هغوی د عاقبت له تصوره غافل شوي يئ ! او له فاني متاع څخه څومره برخه چې ستاسې لپاره مقدره ده؛ همغه دررسيږي، او ستاسې ټول کارونه بيخي د هغوی په شان دی، نو ښه وپوهيږئ چې ستاسې حشر هم د هغوی په شان دی، له هغوی سره مال، اولاد او جسماني قوتونه له تاسې څخه زيات وو، خو سره له هغه هم د الله تعالی جل جلاله د انتقام او نيونې څخه يې ځان ونشو ژغورلی (ساتلی)، نو تاسې پر کوم شي باندې ډاډينه او اطمينان لرئ، چې په داسې اندازه د الله تعالی جل جلاله له سزا او پوښتنې څخه بې پروا ناست يئ؟ .

اُولٰٓئِكَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۶۹﴾

دغه کسان باطل (خراب محو) شو عملونه د دوی په دنيا او آخرت کې، او دغه کسان هم دوی دي زيانکاران (يا همدغه بې برخې دي له هره بابه).

**تفسیر:** یعنې هيڅ دنيوي او اخروي برکت او کرامت د هغوی په برخه نشو، باقي د دنيوي لذتونو هغه حصه چې ظاهراً د هغوی په برخه شوه؛ هغه في الحقيقت د دوی په حق کې استدراج او عذاب وو، لکه چې دوه رکوع ړومبی (۵۵) آيت کې د ﴿فَلَا تُعْجِبْكَ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ﴾ په تفسير کې تېر شو، او له هغه څخه پخوا په څو نورو ځايونو کې هم ليکلی شوی دی.

أَلَمْ يَأْتِهِمْ نَبَأُ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ ۙ وَقَوْمِ إِبْرَاهِيمَ وَأَصْحَابِ مَدْيَنَ وَالْمُؤْتَفِكَاتِ ۚ

آيا نه دي راغلې دوی ته خبر (د عذاب د) هغو كسانو چې پخوا وو له دوی نه، قوم د نوح او عاد او ثمود او قوم د ابراهيم او خښتنان د (ښار د) مدين او چپه شوو اړول شوو كليو (د لوط).

تفسير: د نوح عليه السلام قوم په طوفان، د (عاد) قوم په صرصر (سيلۍ) او د (ثمود) قوم په صيحه (غيبي چغه) هلاك شول، الله تعالى جل جلاله د ابراهيم عليه السلام تاييد په عجيب او غريب ډول وفرمايه، چې د هغه په ليدلو سره د هغه قوم ذليل او ناكام شو، د دوی پاچا (نمرود) په ډېر بد حال او خراب مرګ ووژل شو، د مدين ښار اصحاب په صيحه او زلزله او نورو سره تباه شول، د لوط عليه السلام د قوم كلي بيخي په بل مخ واړول شول، او د كاڼو باران پرې وشو، د دغو ګردو (ټولو) اقوامو قصې بې د ابراهيم عليه السلام له قومه د «الأعراف» په سورت كې تېرې شوي دي.

أَتَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ ۖ فَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٧٠﴾

چې راوړې وې دوی ته رسولانو د دوی ښكاره معجزې (نو تكذيب وكړ دوی د رسولانو، نو هلاك شول) نو نه وو الله چې ظلم به يې كولو په دوی، وليكن وو دوی چې په ځانونو خپلو به يې ظلم كولو (په كفر او تكذيب سره).

تفسير: يعني الله تعالى جل جلاله هيڅا ته بې سببه او بې ځايه جزا سزا نه وركوي، دغه خلق په خپله په داسې ګناهونو بوخت (مشغول) او لګيا دي، چې د هغو په اثر پر دوی د الله تعالى جل جلاله د عذاب راتلل ضروري دي.

وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۚ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۚ أُولَٰئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٧١﴾

او سړي مؤمنان او ښځې مؤمنانې ځينې د دوی دوستان دي د ځينو نورو حكم كوي دوی په نېكيو (چې د الله او د رسول الله اطاعت دی)، او منع كوي له بديو چې (د الله او د رسول الله نه مخالفت دی)، او دروي (له ټولو حقوقو سره سم اداء كوي) لمونځ، او وركوي دوی زكات، او حكم مني د الله او (حكم مني) د رسول الله، دغه كسان ژر به رحم وكړي په دوی الله، بېشكه چې الله ښه غالب قوي دی (د حكمونو په جاري كولو) ښه د حكمت خاوند (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي).

تفسير: يعني منافقان خلق له نېكۍ څخه منع كوي، او د بدۍ په لوري ترغيب وركوي، او مؤمنان خلق له بدۍ نه ژغوري، او د نېكۍ په لوري يې تشويق كوي، د منافقانو موټي كلك دي، او د مسلمانانو لاسونه پرانيستي دي، منافقان د شومتيا له امله خپل مال نه لګوي، او مؤمنان د الله تعالى جل جلاله له حكمه سره سم د خپلو مالونو زكات، صدقې او خيرات وركوي، له منافقانو څخه بيخي الله تعالى جل جلاله هېر دی، ولې مؤمنان هره ورځ پنځه وخته لمونځ كوي، او په ټولو معاملاتو كې د الله تعالى جل جلاله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له حكمونو سره سم ټګ كوي، نو ځكه منافقان د الله تعالى جل جلاله د عذاب او د لعنت مستحقان شول، او مؤمنان د پاك الله جل جلاله د ثواب او خصوصي رحمت مستحق وګرځېدل.

وَعَدَ اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً فِي جَنَّاتِ عَدْنٍ ۚ وَرِضْوَانٌ مِّنَ اللَّهِ أَكْبَرُ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٧٢﴾

وعده کړې ده الله له نارينه وو مؤمنانو او له ښځو مؤمناتو سره د جنتونو چې بهيږي له لاندې (د ماڼيو او ونو) د هغو (څلور قسمه) وياليې، تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې او (وعده کړې ده الله) د ځايونو پاکو (چې ثابت دي) په جنتونو د تل اوسېدلو کې، او رضاء له (جانبه د) الله ډېره لويه ده (له جنتونو او نعمتونو او نورو څخه)، دغه (رضا د الله) هم دغه بری دی ډېر لوی.

**تفسير:** يعني د ټولو دنيوي او اخروي نعمتونو څخه ډېر لوی نعمت د الله تعالی جل جلاله رضا او خوښي ده، جنت هم له همدې امله غواړي چې هغه د الله تعالی جل جلاله د رضا مقام دی، او حق سبحانه و تعالی جل جلاله به په جنت کې مؤمنانو ته هر ډول جسماني او روحاني نعمتونه او خوشالی ورکوي، مګر د ټولو څخه لوی نعمت به د حقيقي محبوب دائمي رضا او د هغه ليدل وي.

په صحيح حديث کې راغلي دي چې: حق تعالی جل جلاله به جنتيانو ته غږ کوي چې: «ای جنتيانو !» جنتيان به په ځواب کې عرض وکړي «لبّيک»، بيا به پوښتنه وکړي چې «هل رضيتم ـ آيا اوس خوښ شوي يئ؟» جنتيان به داسې عرض وکړي: «ای پروردګاره ! ولې به نه يو خوشاله حال دا چې تا خپل انتهايي انعام او مهرباني پر مونږ کړې ده»، بيا به داسې پوښتنه وشي، «هـل أعطيتم أفضل من ذلك؟ ـ هر هغه شيان چې تر اوسه پورې تاسې ته درکړی شي دي، آيا د هغو څخه د بل کوم ښه شي د موندلو اراده او غوښتنه لرئ؟»، جنتيان به سوال وکړي چې: «يا الله جل جلاله ! له دغو نعمتونو او مهربانيو څخه به بل کوم غوره، اعلی او خورا (ډېر) ښه نعمت وي؟»، دلته به الله تعالی جل جلاله فرمايي: «أحل عليكم رضواني فلا أسخط عليكم أبدا ـ خپله دائمي رضا او خوښي تاسې ته درلېږم، چې له هغه وروسته به هيڅ خفګان او نا خوښي نه وي».

رزقنا الله وسائر المؤمنين هذه الكرامة العظيمة الباهرة

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿٧٣﴾

ای نبي (محمده !) جهاد کوه ته له کفارو سره (په توره) او له منافقانو سره (په حجت او اقامت د حدودو) او سختي کوه پر دوی، او (آخري) ځای د ورتلو د دوی دوزخ دی، او بد ځای د بېرته ورتلو دی (دا دوزخ).

**تفسير:** د (جهاد) معنی د کوم ناکاره شي په دفع کې انتهايي کوښښ کول دي، دغه کوښښ کله په وسله، کله په ژبه، کله په قلم او کله په بله کومه طريقه وي، د منافقانو مقابل کې (چې په ژبه د اسلام اظهار کوي او له زړه مسلمانان نه دي) د محمدي امت د جمهورو په نزد (جهاد السيف) مشروع نه دی، او نه د نبوّت په زمانه کې داسې واقع شوي دي.

نو ځکه د جهاد لفظ په دغه آيت کې عام دی، يعنې په توره، په قلم، په ژبه، په هر وخت، په هر ډول مقابلې سره چې مصلحت وي؛ جهاد دې وشي ! د ځينو علماوو دا رايه ده، که د منافقانو نفاق بيخي ښکاره او عيان شي، نو پر دوی باندې هم (بالسّيف) جهاد کېدی شي.

په هر حال څرنګه چې د تبوك په غزا کې د منافقانو نفاق بيخي ښکاره شوی وو، نو ځکه په دغه آيت کې د دوی سره د لږې سختې رويې غوره کولو هدايت ورکړی شوی دی، ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فطرتاً ډېر حليم

او خورا (ډېر) نرم خویه او مهربان وو، لکه چې په خپله پاک الله جل جلاله فرمایي: ﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ لِنتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ﴾ (۴ جزء د آل عمران سورت (۱۵۹) آیت (۱۷) رکوع) د الله تعالی له جانبه پرې حکم شوی وو: ﴿وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (۱۹ جزء د الشعراء (۲۱۵) آیت (۱۱) رکوع).

څرنګه چې منافقان هم په ښکاره د مؤمنانو په ډله کې شامل وو، نو ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم هم د هغوی له کارونو څخه اغماض او عفوه کوله، او ورنه تېرېده، او نرمي به یې ور سره کوله، د (تبوک) په غزا کې کله چې منافقانو په پوره ښکاره ډول سره بیحیایي، عناد، عداوت او دښمني اختیار کړه؛ نو داسې حکم وشو چې اوس د منافقانو په مقابل کې سختي اختیار کړئ! ځکه چې دغه شریر خلق په ښو اخلاقو او نرمی سره په لاره نه راځي.

يَحْلِفُونَ بِاللَّهِ مَا قَالُوا وَلَقَدْ قَالُوا كَلِمَةَ الْكُفْرِ وَكَفَرُوا بَعْدَ إِسْلَامِهِمْ وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا ۚ وَمَا نَقَمُوا إِلَّا أَنْ أَغْنَاهُمُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ مِن فَضْلِهِ ۚ فَإِن يَتُوبُوا يَكُ خَيْرًا لَّهُمْ ۖ وَإِن يَتَوَلَّوْا يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ عَذَابًا أَلِيمًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَمَا لَهُمْ فِي الْأَرْضِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٧٤﴾

قسمونه خوري دوی په الله باندې چې نه دي ویلي دوی (دا خبرې چې تاته دررسېدلې دي) او خامخا په تحقیق ویلې وه دوی کلمه (الفاظ) د کفر، او کافران شوي دي دوی (ظاهراً هم) وروسته له (اظهار د) اسلام خپل، او قصد یې کړی وو د هغه شي چې ور ونه رسېدل دوی (هغه ته)، او عیب نه لګاوه دوی (په الله او رسول الله) مګر له دې جهته چې غنیان کړل دوی الله او رسول د الله له فضله خپله، نو که توبه وویسته دوی (له دغه نفاقه)؛ نو وي به (دغه توبه غوره) خیر دوی ته، او که بېرته وګرځي دوی (له توبې)؛ نو عذاب به ورکړي دوی ته الله په عذاب دردناک سره په دنیا کې (په وژلو) او په آخرت کې (په سوځولو سره)، حال دا چې نه به وي دوی ته په (تمامه) ځمکه کې هیڅ ولي (دوست ساتونکی له بلاګانو) او نه مددګار (خلاصوونکی له عذابونو څخه).

تفسیر: منافقانو به پسې شا په خپلو منځونو کې یو تر بله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د اسلامي دین سپکاوی کاوه لکه چې د (المنافقون) په سورت کې به راشي، کله چې کوم مسلمان د منافقانو دغه خبرې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته رسولې؛ نو منافقانو به هغه دروغجن ګاڼه، او قسمونه به یې خوړل چې مونږ داسې خبرې نه دي کړې، الله تعالی جل جلاله د مسلمانانو د روایتونو تصدیق وکړ، چې بېشکه منافقانو همداسې خبرې کړې دي، او د اسلام له دعوی څخه وروسته یې همداسې کلمې د اسلام او د اسلام د نبي صلی الله علیه وسلم په نسبت ویلې دي؛ چې داسې وینا یواځې د همدغو منکرانو له خولو څخه راوتلی شي.

﴿وَهَمُّوا بِمَا لَمْ يَنَالُوا﴾: «او قصد یې کړی وو د هغه شي چې ور ونه رسېدل دوی هغه ته» یعنې د (تبوک) د غزا څخه د بېرته راتللو په وخت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم له لښکره بېل شوی وو، او په هغه لاره تلو، چې په غره کې تېره شوې وه، تقریبا دولسو منافقانو خپل اربوزونه (مخونه) تړلي وو، د شپې په تیاره کې یې غوښتل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لاس واچوي، او «معاذ الله» محمد صلی الله علیه وسلم له کومې لوړې څخه ژورې ته وغورځوي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره حُذیفه او عمّار رضي الله تعالی عنهما وو، منافقان د عمّار نه چپ چاپېره شول، مګر حذیفه په وهلو وهلو د منافقانو د اوښانو مخونه بل لوري ته واړول، څرنګه چې د هغو مخونه پټ وو، حذیفه رضي الله تعالی عنه او نورو هغوی ونه پېژندل، وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم حُذیفه او عمّار رضي الله تعالی عنهما ته د هغوی ټولو نومونه او شهرتونه وروښودل، او پوره یې ور معرفي کړل.

مګر تاکید یې وکړ چې دا حال چا ته مه وایئ، د دغې واقعې په لوري په ﴿وَهَمُّوا۟ بِمَا لَمْ يَنَالُوا۟﴾ کې اشاره ده، چې هغه ناپاک قصد چې هغو کړی وو؛ د الله تعالی جل جلاله په فضل او مرحمت سره سر ته ونه رسېد.

ځینو علماوو لیکلي دي، چې په یو ځای کې د اسلامي لښکرو په منځ کې څه کورنی جګړه او جنګ نښتی وو، منافقانو دلته په شیطاني او اغواء باندې لاسونه پورې کړل، او غوښتل یې چې د انصارو او مهاجرینو په منځ کې د نفاق او اختلاف په اچولو کې کوښښ وکړي، ولې ناکامه پاتې شول، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغو په منځ کې جوړه وکړه، چې د (المنافقون) په سورت کې یې تفصیل راځي.

﴿وَمَا نَقَمُوٓا۟﴾ الآیه ـ «او عیب نه لګاوه دوی په الله او رسول الله صلی الله علیه وسلم مګر له دې جهته» یعنې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دعا په برکت الله تعالی دوی بډایان (مالدار) کړل، د پور له باره یې اوږې سپکې شوې، مسلمانانو سره د ناستې ولاړې له امله (وجې) په ولجو (غنیمت) کې د حصو او برخو خاوندان شول، او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دعا په برکت د دوی حاصلات او پیداوار ښه شوی وو.

نو دوی د دغو نعمتونو په بدله کې له الله تعالی جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره چل، فرېب او ټګي کوله، او په هر ډول د رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو ربړلولو (تکلیفولو) ته یې ملاوې تړلې وې، نو که دوی اوس هم توبه وباسي، او له خپل شرارتونو او احسان هېرولو څخه لاس واخلي؛ نو دغه کار به د دوی په حق کې ډېر ښه وي، که نه الله تعالی جل جلاله به په دنیا او عُقبا کې دوی ته داسې سزا ورکړي، چې د ځمکې په مخ به هیڅوک نه مونډل کیږي، چې له هغې څخه دوی خلاص کړي، په ځینو روایتونو کې راغلي دي، چې (جلاس) نومې یو سړي د دغو آیتونو د اورېدلو په اثر د زړه له خلاصه توبه وویسته، او خپل پاتې ژوند یې له اسلامه جار کړ.

وَمِنْهُم مَّنْ عَٰهَدَ ٱللَّهَ لَئِنْ ءَاتَىٰنَا مِن فَضْلِهِۦ لَنَصَّدَّقَنَّ وَلَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٧٥﴾ فَلَمَّآ ءَاتَىٰهُم مِّن فَضْلِهِۦ بَخِلُوا۟ بِهِۦ وَتَوَلَّوا۟ وَّهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٧٦﴾

او ځینې له دغو (منافقانو) څخه هغه څوک دي، چې عهد یې کړی وو له الله سره: قسم دی چې خامخا که راکړي (الله) مونږ ته (مال) له فضله خپله؛ نو خامخا خیراتونه به ورکوو هرومرو (خامخا) (زکات به ترې باسو) او خامخا به شو مونږ هرومرو (خامخا) له صالحانو څخه. نو کله چې ورکړ (الله) دوی ته (مال) له فضله خپله؛ نو بخل یې اختیار کړ په هغه (مال) او بېرته وګرځېدل دوی حال دا چې دوی شنګ کوونکي وو (له حقه).

تفسیر: دا آیت کریمه د ځینو منافقینو په هکله نازل شوی دی لکه: نبتل بن الحارث، جدّ بن قیس او معتب بن قُشیر، (تفسیر القرطبي، زاد المسیر).

فَأَعْقَبَهُمْ نِفَاقًا فِى قُلُوبِهِمْ إِلَىٰ يَوْمِ يَلْقَوْنَهُۥ بِمَآ أَخْلَفُوا۟ ٱللَّهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا كَانُوا۟ يَكْذِبُونَ ﴿٧٧﴾

پس وګرځاوه (الله) عاقبت (د فعل) د دوی نفاق په زړونو د دوی کې (چې هیڅ لرې به نشي) تر (هغې) ورځې پورې چې مخامخ کیږي به له الله سره (په قیامت کې)، په سبب د هغه چې مخالفت کړی وو دوی د الله له هغې خبرې چې وعده کړې وه دوی له الله سره، او په سبب د دې چې وو دوی چې دروغ به یې ویل.

تفسیر: یعنې له الله تعالی جل جلاله سره د څرګندې وعده خلافۍ او دروغ ویلو په سبب دوی د بخل او اعراض اثر داسې شو؛ چې د تل لپاره د نفاق ونه د دوی په زړونو کې قائمه شوه، او تر مرګه پورې لرې کېدونکې نه ده، او د الله

جل جلاله عادت په دې جاري دی، چې که کوم سړی بنه یا بد خصلت ځان ته غوره کړي؛ نو د بیا بیا کولو له امله هغه دائمي ګرځي، د خراب خصلت له دغه دوام او استحکام څخه کله کله په ختم او طبع (مهر لګولو) سره تعبیر کیږي.

أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ سِرَّهُمْ وَنَجْوَاهُمْ وَأَنَّ اللَّهَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿٧٨﴾

آیا نه دي پوهیدلي دغه (وعده خلافان) چې بېشکه الله عالم دی په پټو (نیتونو) د دوی، او په پټو مجلسونو د دوی، او (نه دي پوهیدلي دوی په دې خبره چې) بېشکه الله ښه عالم دی په ټولو پټو (خبرو هم).

الَّذِينَ يَلْمِزُونَ الْمُطَّوِّعِينَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ فِي الصَّدَقَاتِ وَالَّذِينَ لَا يَجِدُونَ إِلَّا جُهْدَهُمْ فَيَسْخَرُونَ مِنْهُمْ ۙ سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٩﴾

هغه منافقان چې عیب وایي په (ډېرو) خیرات کوونکو باندې له مؤمنانو په (اداء د) صدقاتو کې او (بل) د هغو (بې وزلو عیب وایي) چې هیڅ نه مومي دوی مګر په قدر د وس (او زیار او کوښښ) خپل، پس مسخرې کوي دغه (منافقان) په دوی پورې، ټوقي مسخرې به وکړي الله په دوی پورې (د دوی د مسخرو په مقابل کې) او شته دوی ته عذاب دردناک.

تفسیر: یو ځلې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مسلمانانو ته د صدقې ورکولو په نسبت ترغیب وکړ: «چې په دغو صدقاتو د تبوک د لویې غزا تیاری وکړي، ابو بکر الصدیق رضي الله تعالی عنه هر څه چې په کاله کې موندل؛ هغه یې ټول ورکړل، عمر فاروق رضي الله تعالی عنه خپل نیمایي مال ورکړ، جامع القرآن عثمان بن عفان رضي الله تعالی عنه درې سوه اوښان له بارونو سره ورکړل، علي مرتضی رضي الله تعالی عنه زر اشرفۍ ورکړې، عبد الرحمن بن عوف رضي الله تعالی عنه څلور زره درهم (یا دینار) ورکړل، عاصم بن عدي رضي الله عنه سل وسقه خورما (چې قیمت یې څلور زره درهمه کېده) ورکړې».

نو منافقانو د دغو صدقې ورکوونکو بد ویل شروع کړل، او ویل به یې چې: دغو نومړو معظمو أصحابو دغه ډېرې روپۍ او زیات مال په ریا او ځان ښودنې ورکړي دي، او یو غریب مفلس صحابي ابو عقیل حبحاب چې په خوارۍ او مزدورۍ او مشقت سره به یې لږ شی ګټل، یوه پیمانه خورما صدقه کړه، نو منافقانو پر ده باندې خندل، او ملنډې به یې پرې وهلې، چې دې خامخا په زور سره خپل ځان ښيي، او ځان په وینو لړلو شهیدانو کې داخلوي، که نه یوې پیمانې خرماوو ته د الله تعالی جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه څه احتیاج؟ خو نوم یې کاوه، مطلب دا چې لږ او ډېر شي ورکوونکي دواړه د دوی له ژبو نه وو خلاص، ځینو ته به یې پیغورونه ورکول، او په ځینو به یې مسخرې کولې؛.

نو الله تعالی جل جلاله وفرمایل: ﴿سَخِرَ اللَّهُ مِنْهُمْ﴾ «الله تعالی جل جلاله به د دې پیغورونو او مسخرو په مقابل کې په دوی پورې ټوقې او مسخرې وکړي»، که څه هم ظاهراً دوی څو ورځې د ټوکو، مسخرو او منلډو (ټوقو) لپاره آزاد پرېښودلي شوي وو؛ خو په حقیقت کې په پټه کې د دوی د امن او هوسایي (آرام) ټولې ریښې او رګونه پرې کیږي، او دوی ته ډېر دردناک عذاب تیار دی.

اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٨٠﴾

بخښنه وغواړه لپاره د دغو (منافقانو) یا مه غواړه بخښنه (لپاره د دغو منافقانو)، که بخښنه وغواړې ته دوی ته اویا کرته؛ نو له سره به بخښنه ونه کړي الله دوی ته، دغه (نه بخښل) په سبب د دې

دي، چې بېشکه دوی کافران شوي دي په الله او په رسول د الله، او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم فاسقانو ته.

**تفسير:** يعنې د منافقانو لپاره چې تاسې هر څومره استغفار او بخښنه غواړئ، هغه د دوی په حق کې بيخي بې اثره او بې فائدې ده، الله تعالی جل جلاله دا بدبخته کافران او نافرمانان هيڅکله نه بخښي.

دا پېښه داسې وشوه چې په مدينه منوره کې د منافقانو رئيس عبد الله بن أُبيّ مړ شو، رسول الله صلی الله عليه وسلم د کفن لپاره خپل مبارک کميس ورکړ، او د خپلې خولې مبارکې لاړې يې په خوله کې ورواچولې، او د ده د جنازې لمونځ يې اداء کړ، او د مغفرت دعا يې ورته وکړه.

عمر رضي الله تعالی عنه په دغه معامله کې مداخله او مخالفت وکړ، او ويې ويل چې: يا رسول الله ! دا خو همغه خبيث دی چې په هغه او دغه وخت کې يې دغسې او هغسې ناولي کارونه کړي وو، او تل د کفر او نفاق مشر او بيرغ پورته کوونکی وو، آيا الله تعالی جل جلاله نه دي فرمايلي: ﴿إِسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْلَا تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِينَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَهُمْ﴾.

رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «ای عمره ! زه له استغفاره نه يم منع شوی، بلکه آزاد پرېښودل شوی يم، چې بخښنه وغواړم يا ونه غواړم، او دغه د الله تعالی جل جلاله کار دی چې بخښنه ورته کوي، که يې نه کوي» يعنې که څما استغفار هغه ته ګټه (فائده) ونه کړي؛ نو ودې نه کړي، ښايي چې څما دا کار د نورو په حق کې ګټور ثابت شي، که د اسلام لوی دښمنان د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ښو اخلاقو وسعت او عام رحمت ووينې؛ نو مسلمانان به شي لکه چې همداسې هم وشول.

د صحيح بخاري شريف په يو روايت رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: «که زه پوهېدی چې په اويا ځلې استغفار سره هم هغه ته بخښنه کېدلې؛ نو ما به له اويا ځلې څخه زيات استغفار ورته غوښتلی وی»، ګواکې په دغې جملې سره رسول الله صلی الله عليه وسلم تنبيه وفرمايله، چې د عمر رضي الله تعالی عنه په شان ده هم هغه ته خپل استغفار ګټور نه ګاڼه، يواځې دومره قدرې فرق شته، چې د عمر رضي الله تعالی عنه نظر يواځې د (بغض في الله) له کبله (له وجې) په همدغې نه بخښنې پورې مقصور وو، مګر نبي کريم صلی الله عليه وسلم دمړي د ګټې (فائدې) څخه صرف نظر کړی، د نبوت د عمومي شفقت اظهار او د ژوند يو فائده يې په نظر کې نيولې وه.

بالاخر د الله تعالی وحي ﴿وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِ﴾ په تصريح سره د منافقانو د جنازې کولو يا د دوی په تکفين، تدفين او تجهيز کې له برخې اخيستو څخه يې منع کړ، څکه چې له دغه وضعيت (حالت) څخه د منافقانو د لا زړور کېدلو او د مسلمانانو د زړونو د ماتېدلو احتمال وو، نو د دې آيت له نزوله وروسته بيا رسول الله صلی الله عليه وسلم د هيڅ يو منافق جنازه اداء نه کړه.

فَرِحَ الْمُخَلَّفُونَ بِمَقْعَدِهِمْ خِلَافَ رَسُولِ اللَّهِ وَكَرِهُوا أَن يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَالُوا لَا تَنفِرُوا فِي الْحَرِّ ۗ قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا ۚ لَّوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ ﴿٨١﴾

خوشاله شوي وو ېرته پاتې شوي (له غزا د خپل نفاق له امله ـ وجې) په کېناستو خپلو ېرته له رسول د الله څخه، او بده ګڼله دوی دا چې جهاد وکړي دوی په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره د الله کې، او ويل به دوی (په خپلو منځونو کې يا مؤمنانو ته) چې: مه ځئ تاسې (د تبوک دې غزا ته) په دغې ګرمۍ کې، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې اور د دوزخ ډېر سخت دی له جهته د ګرمۍ (دوی ته له دې حرارته) که وی دوی چې پوهېدی (نو نافرماني به يې نه وه کړې).

تفسیر: دا د هغو منافقانو په متعلق دی، چې د (تبوک) په غزا کې یې ګډون نه وو کړی، یعنې د منافقانو دغه حال چې د بدو او عیب جنو کارونو په کولو خوښیږي، او له ښو کارونو څخه کرکه کوي، او لرې ترې تښتي، لکه چې زیاتره ښو خلقو ته پیغورونه ورکوي، او مسخرې پرې کوي، دغسې قوم ته د پیغمبر صلی الله علیه وسلم له استغفاره څه ګټه (فائده) رسېدی شي؟ له دې ځایه د ګناهګارو او بد اعتقادو په منځ کې فرق پیدا کیږي.

داسې هیڅ یوه ګناه نشته چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په استغفار ونه بخښله شي، ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا﴾ (۵ جزء د النساء سورت (۶۴) آیت (۹) رکوع).

لیکن بد اعتقاد ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اویا ځلې استغفار څخه هم څه فائده نه ور رسیږي.

﴿وَقَالُوا لَا تَنفِرُوا فِي الْحَرِّ﴾ «او ویل به دوی په خپلو منځونو کې مؤمنانو ته چې: مه ځئ تاسې دغې غزا د تبوک ته په دغې ګرمۍ کې»، یعنې یا منافقانو دغسې ویناوې په خپلو منځونو کې سره کولې، یا خو یې ځینو مؤمنانو ته، څو د دوی زړونه مات او همتونه یې سست کړي.

﴿قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا لَّوْ كَانُوا يَفْقَهُونَ﴾ «ووایه ای محمده ! دوی ته چې: اور د دوزخ ډېر سخت دی ل جهته د ګرمۍ دوی ته له دې حرارته که وی دوی چې پوهېدی؛ نو نافرماني به یې نه وه کړې»، یعنې که دغو منافقانو پوهه لرلی؛ نو داسې فکر به یې کاوه چې دوی د هغه حرارت او تودوخې څخه ځان ژغوري (ساتي) خو د هغه په ځای د داسې حرارت په لوري ورځي، چې د هغه ګرمي د دې ګرمۍ څخه ډېره زیاته او نهایته سخته ده، د دغه مثال خو داسې کېدی شي، چې کوم لېونی له لمره وتښتي، او په اور کې ننوځي، په مبارک حدیث کې راغلي دي، چې د دوزخ د اور حرارت د دنیا له اور څخه (۹۷) درجې زیات دی، نعوذ بالله منها.

فَلْيَضْحَكُوا قَلِيلًا وَلْيَبْكُوا كَثِيرًا جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۸۲﴾

نو ودې خاندي دوی لږ (په دنیا کې) او ودې ژاړي ډېر (په آخرت کې) له جهته د جزاء په سبب د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې.

تفسیر: یعنې دوی دې څو ورځې په خپلو دغو حرکاتو خوښ او خوشال اوسي ! او ودې خاندي ! بیا به دوی د دغو چارو په سزا کې تل ترتله وژاړي !.

فَإِن رَّجَعَكَ اللَّهُ إِلَىٰ طَائِفَةٍ مِّنْهُمْ فَاسْتَأْذَنُوكَ لِلْخُرُوجِ فَقُل لَّن تَخْرُجُوا مَعِيَ أَبَدًا وَلَن تُقَاتِلُوا مَعِيَ عَدُوًّا ۖ إِنَّكُمْ رَضِيتُم بِالْقُعُودِ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَاقْعُدُوا مَعَ الْخَالِفِينَ ﴿۸۳﴾

نو که بېرته راوستي ته الله (مدیني ته) یوې طائفې ته له دغو وروسته پاتې شویو خلقو څخه (چې منافقان دي)، نو بیا اجازه وغواړي دوی له تا څخه د وتلو (بلې غزا ته)؛ نو ووایه (ای محمده ! دوی ته): چې له سره به ونه وځئ تاسې له ما سره هیڅکله (هیڅ جنګ ته)، او له سره به ونه جنګیږئ په ملګرتیا ځما د هیڅ دښمن سره، بېشکه چې تاسې راضي شوي یئ په کېناستو (او بېرته پاتې کېدلو) اول وارې (په غزا د تبوک کې)؛ نو بیا ناست اوسئ تاسې سره د بېرته پاتې شویو (ښځو او هلکانو).

تفسیر: رسول الله صلی الله علیه وسلم په (تبوک) کې او منافقان په مدینه منوره کې وو، ممکن وو چې ځینې منافقان د رسول الله صلی الله علیه وسلم له راتګه پخوا مړه شي، نو ځکه یې ﴿إِلَىٰ طَائِفَةٍ مِّنْهُمْ﴾ وفرمایل، یعنې که او س دغه منافقان بلې کومې غزا ته د تلو اجازه وغواړي؛ نو ته دوی ته داسې ووایه: بس دی ستاسې مېړانه (بهادري)، او توره ښه

راځرګنده شوه، او ستاسې د زړونو حال لا ړومبی له دې ښکاره شوی دی، نو وروسته تر دې له مونږه سره وتلی نشئ، او نه د اسلام د دښمنانو په مقابل کې څه مېړانه (بهادري) ښوولی شئ، نو د بې لاسو او بې پښو ضعیفانو او ناتوانو، سپین ګیرو او هلکانو، جونو او ښځو سره پخپلو کورونو کې کېنئ، او هغه شی چې اول ځلې تاسې د خپلو ځانونو لپاره غوره کړی ډېر ښه دی، چې پر همغه حالت باندې ومرئ، څو د الله تعالی جل جلاله د عذاب خوند ښه وڅکئ.

وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰٓ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا وَلَا تَقُمْ عَلَىٰ قَبْرِهِۦٓ ۖ إِنَّهُمْ كَفَرُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَمَاتُوا۟ وَهُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٨٤﴾

اومه کوه لمونځ (د جنازې) په هیڅ یو تن له دغو (منافقانو) چې مړ شي هیڅکله، او مه درېږه په قبر د ده (د دعا، استغفار یا د تدفین د اهتمام لپاره)، بېشکه چې دغه (منافقان) کافران شوي دي په الله (چې شرک یې کړی دی) او په رسول د الله (چې له زړه یې نه دی منلی) او مړه شول حال دا چې دوی فاسقان وو.

تفسیر: دغه آیت د عبد الله بن أُبيّ څخه وروسته نازل شوي دي، لکه چې د همدې سورت د (۸۰) آیت په تفسیر کې مونږ هغه په تفصیل سره لیکلي دي، د دې آیت له نازلېدو نه وروسته د منافقینو جنازه کول بیخي منعه شو، عمر فاروق رضي الله تعالی عنه به احتیاطاً د هغه سړي په جنازه کې ګډون نه کاوه، چې د هغه په جنازه کې به حُذیفه رضي الله تعالی عنه ګډون نه وو کړی، ځکه چې حذیفه رضي الله تعالی عنه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم د ډېرو منافقانو نومونه ښوولي وو، او ښه ورمعرفي کړي وو، نو ځکه د ده لقب (صاحب سرِّ رسول الله صلی الله علیه وسلم) وو.

وَلَا تُعْجِبْكَ أَمْوَٰلُهُمْ وَأَوْلَٰدُهُمْ ۚ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُعَذِّبَهُم بِهَا فِى ٱلدُّنْيَا وَتَزْهَقَ أَنفُسُهُمْ وَهُمْ كَٰفِرُونَ ﴿٨٥﴾

او نه دې په تعجب کې اچوي تا مالونه د دغو (منافقانو که څه هم ډېر وي) او اولادونه د دوی (که څه هم قوي او زورور وي)، بېشکه همدا خبره ده چې اراده لري الله د دې چې په عذاب کړي دوی په دغو (مالونو او اولادونو) په دغه دنیا (لږ خسیس ژوندون) کې، او ووځي (له بدنه ساوې) ارواح د دوی (په ډېر سختی او غم سره)، حال دا چې دوی کافران وي (او په کفر ومري).

تفسیر: په همدې جزء د (التوبة) په (۵۵) آیت (۷) رکوع کې په همدې مضمون یو بل آیت هم تېر شوی دی، دلته دی همغه تفسیر بیا وکتل شي.

وَإِذَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ أَنْ ءَامِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَجَٰهِدُوا۟ مَعَ رَسُولِهِ ٱسْتَـْٔذَنَكَ أُو۟لُوا۟ ٱلطَّوْلِ مِنْهُمْ وَقَالُوا۟ ذَرْنَا نَكُن مَّعَ ٱلْقَٰعِدِينَ ﴿٨٦﴾

او کله چې نازل کړ شي کوم سورت په دې خبره چې ایمان راوړئ تاسې په الله او جهاد وکړئ تاسې په ملګرتوب درسول د الله؛ نو غواړي اجازه له تا نه (د بېرته پاتې کېدو) خاوندان د قدرت (د مال) له دوی، او وایي دغه (منافقان): پرېږده مونږ چې اوسو سره د (کور) کېناستونکو (ښځو، هلکانو).

تفسیر: کله چې د قرآنکریم په کوم سورت کې خبرداری ورکول کیږي، چې په پوره اخلاص او په ټینګه ایمان راوړئ ! ښایي د هغه په اثر داسې ښکاره شي چې له نبي صلی الله علیه وسلم سره یو ځای شي ! او د الله تعالی په لاره کې جهاد وکړي ! ؛ نو دغه منافقان ترې ځنګ کوي، او په دوی کې د توان او قدرت خاوندان هم د دروغو پلمې (تدبیرونه) او بهانې جوړوي، او له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اجازه غواړي، چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! مونږ ته اجازه راکړئ چې همدلته په مدینه کې پاتې شو، ګواکې د ډېرې بې غیرتی او نامردی له امله (وجې)

پر دغه باندې راضي شوي دي چې د جنګ یا د خطرې د نامه له اورېدلو څخه لکه په پرده کې کېناستونکو ښځو غونډې په کورونو کې ننوځي، هر کله چې د جنګ خطر له مینځه لاړ شي، او د اطمینان او آرامۍ وخت راشي؛ نو بیا په خبرو جوړولو کې لکه بیاتي (قیچي) غونډې په ژبه ښورولو له تېرولو ځني وړاندې وړاندې ځي: ﴿فَإِذَا جَآءَ ٱلۡخَوۡفُ رَأَيۡتَهُمۡ يَنظُرُونَ إِلَيۡكَ تَدُورُ أَعۡيُنُهُمۡ كَٱلَّذِي يُغۡشَىٰ عَلَيۡهِ مِنَ ٱلۡمَوۡتِۖ فَإِذَا ذَهَبَ ٱلۡخَوۡفُ سَلَقُوكُم بِأَلۡسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى ٱلۡخَيۡرِۚ أُوْلَٰٓئِكَ لَمۡ يُؤۡمِنُواْ فَأَحۡبَطَ ٱللَّهُ أَعۡمَٰلَهُمۡۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٗا﴾ (۲۱ جزء د الأحزاب سورت (۱۹) آیت (۲) رکوع).

رَضُواْ بِأَن يَكُونُواْ مَعَ ٱلۡخَوَالِفِ وَطُبِعَ عَلَىٰ قُلُوبِهِمۡ فَهُمۡ لَا يَفۡقَهُونَ ۝٨٧

راضي شول په دې چې وي دوی سره له بېرته پاتې شوو (ښځو، جونو) او مهر لګولی شوی دی په زړونو د دوی (د کُفر او نفاق) نو نه پوهیږي دوی (د جهاد په اجر).

**تفسیر:** یعنې د دروغو، نفاق، له غزا څخه د ځان ژغورلو (بچ کولو) او د پیغمبر څخه د بېرته پاتې کېدلو له شامته د دوی په زړونو مهر لګولی شوی دی، چې اوس دېر لوی لوی عیبونه هم هغو ته د عیب په شان نه ښکاري، او د دې په ځای چې په دغه بې غیرتۍ وشرمیږي؛ ناز او خوشالي پرې کوي.

لَٰكِنِ ٱلرَّسُولُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ جَٰهَدُواْ بِأَمۡوَٰلِهِمۡ وَأَنفُسِهِمۡۚ وَأُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡخَيۡرَٰتُۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُفۡلِحُونَ ۝٨٨ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمۡ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَاۚ ذَٰلِكَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ۝٨٩

لیکن رسول (د الله) او هغه کسان چې ایمان لرونکي دي له ده سره جهاد یې وکړ په مالونو خپلو او ځانونو خپلو، او دغه کسان همدوی لره دي ښېګڼې (فائدې) او دغه کسان همدوی دي په مراد رسیدلي (بریالیان). تیار کړي دي الله دوی ته جنتونه چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ویالې، تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې، دغه (ننوتل د جنت) بری دی لوی (په نفس او شیطان).

**تفسیر:** دلته الله تعالی جل جلاله د منافقینو په مقابل کې د مخلصینو بیان فرمایي، چې وګورئ دغه دي د الله تعالی جل جلاله وفادار بندګان چې د پاک الله جل جلاله په لاره کې یې نه په خپل ځان اړ (ایسار) دي، او نه خپل مالونه منع کوي، بلکه له سر او مال دواړو تېر دي، او که هر څومره سخت خطرونه موجود وي، دوی د اسلام حمایت او د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملګرتیا کوي، او هر ډول قرباني او ځان جارولو ته حاضر او تیار دي، نو بیا که د داسې خلقو لپاره فلاح او بری نه وي؛ نو د چا لپاره به وي؟.

وَجَآءَ ٱلۡمُعَذِّرُونَ مِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ لِيُؤۡذَنَ لَهُمۡ وَقَعَدَ ٱلَّذِينَ كَذَبُواْ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥۚ سَيُصِيبُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ مِنۡهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ۝٩٠

او راغلل د دروغو عذر کوونکي له (صحرایي) اعرابو څخه لپاره د دې چې اذن ورکړ شي (د پاتې کېدلو) دوی ته او کېناستل هغه کسان چې دروغ یې ویلي وو الله ته او رسول د الله ته (په دعوی د ایمان کې)، ژر به ورسیږي هغو کسانو ته چې کافران شوي دي له دوی ځني عذاب دردناک.

**تفسیر:** یعنې همغسې چې د مدینې منورې په اوسیدونکو کې منافقان هم شته او مخلصان هم، داسې په کلیوالو ناپوهو اعرابو کې هم هر راز خلق پیدا کیږي، له هغو ځني یې دلته دوه قسمه ذکر دي، د مخلصینو کلیوالو ذکر د دغې رکوع په پای (آخر) کې په ﴿وَمِنَ ٱلۡأَعۡرَابِ مَن يُؤۡمِنُ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ﴾ الآیه ـ (۹۹) آیت کې راځي.

دلته د کلیوالو د هغو دوو ډلو ذکر دی چې معذّرون او قاعدون دي، د معذرونو د ډلې په مصداق کې د سلفو مفسرینو په منځ کې اختلاف دی، چې آیا له هغو څنې د دروغو، بهانو او پلمو جوړوونکي منافقین مراد دي (لکه چې له ترجمې څخه ښکاري)، یا په رښتیا سره عذر کوونکي مسلمانان مقصود دي، چې واقعاً د جهاد له ګډون څخه معذور وو.

که ړومبني شق اختیار کړ شي؛ نو په آیت کې به د منافقانو د دواړو قسمونو بیان وي، او معذرون هغه کسان شول چې سره له نفاقه تش د ظاهري رسم او ښودانې لپاره يې په دروغو پلمې او حیلې جوړولې، او له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه يې اجازې غوښتلې.

او له (قاعدون) څخه به هغه منافقان مراد وي، چې هغو ړومبی د ایمان په دعوی کې دروغ ویل، او بیا يې د ظاهري رسم او د ریایي دستور پروا هم دومره ونه کړه، او د جهاد د نفیر (اعلان) د اورېدلو سره هم په خپلو کورونو کې کېناستل، بېباکه او بې حیا شول، او د عذر کولو لپاره هم رانغلل.

نو په دې تقدیر سره به ﴿سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ د منافقانو دغو دواړو ډلو ته شامل وي، او معنی به يې داسې کیږي: هغه کسان چې له دغو دواړو ډلو څخه په خپل کفر باندې تر آخره قائم پاتې کیږي، دوی ته دردناک عذاب مقرر دی، او هغه کسان چې د توبې توفیق ور په برخه کیږي، تر دغه وعید لاندې نه راځي.

که له (معذرون) څخه مخلصان مؤمنان مراد شي چې واقعاً معذور وو؛ نو له (قاعدون) څخه به منافقان مراد وي، او د ﴿سَيُصِيبُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ وعید به یواځې د همدوی په حق کې وي، نو ګواکې د ړومبنی ډلې ذکر به د عذر د قبول په ډول وي.

لَيْسَ عَلَى الضُّعَفَاءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنْفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِ ۚ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِنْ سَبِيلٍ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿۹۱﴾

نشته په ضعیفانو او نه په رنځورانو او نه په هغو کسانو چې نه مومي دوی هغه (مال) چې يې لګوي دوی (په غزا کې) هیڅ ګناه (له غزا څخه په وروسته پاتې کېدلو کې)؛ کله چې اخلاص کوي دوی له الله او له رسول الله سره (او زړونه يې صاف وي)، نشته په نیکوکارانو هیڅ لاره (د الزام او عتاب) او الله ښه بخښوونکی (د ګناهونو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: له دروغو عذر کوونکو څخه وروسته د رښتینو معذورینو عذر بیانوي، حاصل يې دا دی چې عذر خو کله په شخصي ډول (طریقه) لازم بالذات وي، مثلا لکه د زړښت کمزوري چې عادتاً په هیڅ صورت له سړي څخه نشي بېلېدې، او کله عارضي یا بدني وي، لکه ناجوړتیا او نور، یا مالي وي لکه افلاس او د سفر د اسبابو نشتوالی، څرنګه چې د تبوک په غزا کې مجاهدین ډېر لرې او اوږده سفر ته تلل، او په جبري ډول سره يې هلته خپل ځانونه رسول، نو ځکه د سورلۍ د نشتوالي عذر هم معتبر او معقول ګڼل کېده، لکه چې وروسته يې ذکر راځي.

وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ مَا أَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ تَوَلَّوْا وَأَعْيُنُهُمْ تَفِيضُ مِنَ الدَّمْعِ حَزَنًا أَلَّا يَجِدُوا مَا يُنْفِقُونَ ﴿۹۲﴾

او نشته (ګناه په پاتې کېدلو له غزا نه) په هغو کسانو کله چې راغلل دوی تاته لپاره د دې چې سورلۍ ورکړې ته دوی ته؛ نو وویل تا ورته چې: نه مومم زه (هم اوس) هغه شی چې سواره کړم تاسې په هغه نو بېرته وګرځېدل دوی، حال دا چې سترګې د دوی بهېدې (یعنې تویولې) له اوښکو؛ له جهته د غمه له دې وجې چې نه مومي دوی هغه څه چې يې ولګوي (په جهاد کې).

تفسير: په صحيح حديث کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د (تبوک) مجاهدينو ته وويل: «تاسې په مدينه کې داسې يو قوم پرېښى دى، چې له تاسې سره د هر قدم په اجر او ثواب کې شريک دي، هر هغه قدم چې تاسې د الله تعالى جل جلاله په لاره کې اخلئ، يا له کومې بيديا څخه تېرېږئ، يا چې په کومه لوړه خېژئ، يا کومې ژورې ته ښکته کېږئ؛ نو هغه قوم په دغو ګردو مواقعو کې له تاسې سره ملګري او يو ځاى دي، دا هغه خلق دي چې د حقيقي مجبوريتونو له امله (وجې) ستاسې له ملګرتوبه ببرته پاتې شوي دي»، د «حسن رحمه الله» په (مرسل) کې د دغه مضمون له بيان څخه وروسته رسول الله صلى الله عليه وآله وصحبه وسلم د همدغه آيت تلاوت کړى دى: ﴿وَلَا عَلَى الَّذِينَ إِذَا مَا أَتَوْكَ لِتَحْمِلَهُمْ قُلْتَ لَا أَجِدُ﴾ الآيه.

إِنَّمَا السَّبِيلُ عَلَى الَّذِينَ يَسْتَأْذِنُونَكَ وَهُمْ أَغْنِيَاءُ ۚ رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ وَطَبَعَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٩٣﴾

خبره همدا ده چې لاره د ملامتې په هغو کسانو ده چې اذن (د ببرته پاتې کېدلو) غواړي له تا نه حال دا چې دوى غنيان وي، راضي شول په دې چې وي دوى (ناست) سره له ببرته شوو (ښځو، جونو) او مهر لګولى دى الله په زړونو د دوى؛ نو دوى نه پوهيږي (په خپلې بدې خاتمې).

تفسير: يعنې له قدرت او وس سره له جهاد څخه څنګ کوي، او په ډېره بې غيرتى دغه شرم او عار په ځان اخلي، د ښځو په شان په کور کې ناست باهوګان په لاس کوي، په تل او همېشه ګناه کولو سره د انسان زړه داسې مسخ او توريږي، چې په کې د ښو او بدو عيب او هنر، پوهه او تميز نه پاتې کيږي، کله چې د ډېرې بېشرمى او بې عزتى له سببه کوم انسان په دغې اندازې ليونى او پاګل شي، چې د ندامت او تأسف په ځاى بالعکس په ګناه فخر کوي او خوښيږي، نو دلته ښايي وپوهېږئ چې د ده په زړه باندې د الله تعالى جل جلاله مهر لګېدلى دى ـ العياذ بالله.

يَعْتَذِرُونَ إِلَيْكُمْ إِذَا رَجَعْتُمْ إِلَيْهِمْ ۚ قُلْ لَا تَعْتَذِرُوا لَنْ نُؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّأَنَا اللَّهُ مِنْ أَخْبَارِكُمْ ۚ وَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٤﴾

عذرونه به کوي دغه (منافقين) تاسې ته (د پاتې کيدلو خپلو د غزا نه) کله چې ببرته راوګرځئ تاسې دوى ته، ووايه (اى محمده !) مه کوئ دا عذرونه (د دروغو مونږ ته) له سره به باور ونه کړو په تاسې مونږ، په تحقيق خبر کړي يو مونږ الله له احوالو ستاسې، او ژر به ووينى الله عملونه ستاسې او رسول د ده (به هم ووينى چې له خپل نفاقه راګرځئ که نه ګرځئ)، بيا به ببرته بوتلى شئ تاسې (په قيامت کې هغه) عالم د پټو او ښکاره وو (الله) ته، نو خبر به درکړي تاسې ته په هغو کارونو چې وئ تاسې چې کول به مو (له اخفاء د نفاق او اظهار د وفاق).

تفسير: يعنې لکه چې د «تبوک» د تلو په وقت کې منافقينو راز راز (قسم قسم) حيلې او پلمې (بهانې) جوړولې، کله چې تاسې مدينې ته راستانه شئ؛ نو هلته به هم دغه منافقين هم داسې باطل عذرونه دروړاندې کوي، او غواړي چې تاسې مطمئن او ډاډه کړي، او قسمونه به خوري چې: «يا رسول الله ! ځمونږ نيت همدا وو چې له تاسې سره لاړ شو، مګر هغه او دغه موانع او عوائق راوړاندې شول، دلته مجبوراً پاتې شو».

تاسې هغوى ته ووايئ چې: د دروغو جوړولو هيڅ فائده نشته، ستاسې دغه عذرونه لغو، چټي او بېکاره دي، مونږ د الله تعالى له جانبه ستاسې پر دغه کذب او نفاق خبر او مطلع کړى شوي يو، نو ستاسې پر دغو لغويا تو او چټي (بېکاره)

خبرو څرنګه باور کولی شو؟، وروسته له دې نه به ستاسې طرز عمل وليد شي، چې تاسې دغه خپله دعوی تر کومې اندازې پورې تر پای رسولی شئ؟ آیا دغه ټول دعاوی به په ربښتيني صورت سره ظاهريږي او که نه؟ په هر حال د هغه ﴿عٰلِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ﴾ څخه ستاسې هيڅ يوه پټه خبره او عمل يا نيت پټ پاتې کېدی نشي، د الله تعالی حضور ته د خلقو ورتګ دی، او د جزا ورکولو په وخت کې ستاسې د هر وړوکي او لوی او ظاهري عمل هغه په ښکاره ډول سره درظاهروي، او د هغه سره موافق به تاسې ته معامله او جزا سزا به درکړل شي.

سَيَحْلِفُونَ بِاللّٰهِ لَكُمْ اِذَا انْقَلَبْتُمْ اِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوْا عَنْهُمْ ۭ فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمْ ۭ اِنَّهُمْ رِجْسٌ ۡ وَّمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۚ جَزَاۗءًۢ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۹۵﴾

ژر به قسمونه خوري دوی پر الله تاسې ته کله چې بېرته راشئ تاسې دوی ته لپاره د دې چې ښنګ وکړئ تاسې له (عتاب د) دوی نه، نو ښنګ وکړئ تاسې له دوی نه (په ترک د عتاب سره)، بېشکه چې دوی پليت دي، او ځای د ورتلو د دوی جهنم دی، لپاره د جزا ورکولو په هغو کارونو چې وو دوی چې کول به يې.

تفسير: د «تبوک» د غزا نه بېرته راتلو په وقت کې به منافقينو د دروغو قسمونه خوړل، او له هغو دروغو پلمو (تدبيرونو) او حيلو جوړولو څخه د دوی دغه غرض وو، چې رسول الله صلی الله عليه وسلم او مسلمانان پخپلو قسمونو او ملمع ويلو سره راضي او مطمئن کړي، چې د رسالت له درباره پر دوی باندې څه عتاب او ملامتيا او پوښتنه عائده نشي، او د پخوا په شان همداسې معامله په ابهام کې پټه پاتې شي، او مسلمانان له هغو سره څه تعرّض ونه کړي.

حق سبحانه وتعالی فرمايي چې دغه بهتر دی چې تاسې له هغو سره څه تعرّض مه کوئ ! ليکن دغه اغماض او تغافل پر دغه بنا نه دی، چې مسلمانان له هغوی څخه راضي او مطمئن دي، بلکه د دوی د نهايت پليتۍ او شرارت لامله دی، دغه خلق دومره نجس او پليت واقع شوي دي، چې د هغوی د پاکۍ او صفايي هيڅ توقع نشي کېدی.

يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۚ فَاِنْ تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَاِنَّ اللّٰهَ لَا يَرْضٰى عَنِ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۹۶﴾

قسمونه خوري دغه منافقان تاسې ته لپاره د دې چې راضي شئ تاسې له دوی نه، نو که راضي شئ تاسې له دوی نه؛ نو بېشکه الله نه راضي کيږي له فاسق قومونو نه.

تفسير: دمنافقينو لوی کوښښ په دې کې دی؛ چې په مکر، فريب او کذب سره مسلمانان له خپلو ځانونو څخه خوښ او خوشال کړي، فرض يې کړئ که په چل او فريب او بهانو سره مخلوق راضي شي؛ نو له هغه څخه څه فائده در رسېدی شي؟ کله چې پاک الله له ده څخه راضي نه وي.

که له دوی سره د تغافل او اعراض معامله شوې ده؛ نو دغه اغماض له سره د دې خبرې دليل کېدی نشي، چې مسلمانان له منافقانو څخه خوشال او مطمئن هم دي.

اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا وَّاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰي رَسُوْلِهٖ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۹۷﴾

ځيني له صحرايي اعرابو ډېر سخت دي له جهته د کفره، او له جهته د نفاقه (له ښاريانو نه) او ډېر لايق دي له دې سره چې پوهه نشي دوی په حدودو د هغو (احکامو) چې نازل کړي دي الله پر رسول خپل، او الله ښه عالم دی ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: تر دې ځای پورې د مدينې منورې د منافقينو او د مخلصينو احوال بيان شو، اوس د کليوالو صحرائيانو د څه حال ذکر فرمايي چې: په دوی کې هم څو ډوله خلق دي: کفّار، منافقين، مخلصين مسلمانان، څرنګه چې د کلي او سيدونکي په قدرتي ډول سره عموماً تندخوی او سخت مزاج وي، (لکه په حديث کې راغلي دي: «من سکن البادية جفا»)، او د علم او د حکمت د مجالسو څخه د لريوالي لامله د تهذيب او تمدّن اثر او د علم او عرفان رڼا ډېره لږه قبلوي، نو د هغوی کفر او نفاق د ښارونو د کفّارو او منافقينو څخه ډېر سخت دی.

د اعرابو د بې رحمۍ او غټ زړه توب ذکر په متعددو احاديثو کې راغلی دی، په يو حديث کې دي، چې يوه اعرابي له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه: «تاسې له هلکانو (پچو) سره مينه او محبت هم کوئ؟، په الله قسم چې مونږ هيڅ کله له خپلو هلکانو سره مينه او محبت نه کوو !»، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «زه څه وکړم چې پاک الله ستا له زړه څخه خپل رحمت ايستلی دی»؟.

﴿وَاللهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ﴾: «او الله ښه عالم دی په ټولو احوالو ښه حکمت والا چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي»، يعنې د الله تعالی علم د بني آدمانو پر ګردو طبقاتو محيط دی، او دی سم له خپله حکمته د هرې طبقې سره د دوی د استعدادو او قابليتونو سره موافقه معامله کوي.

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ مَغْرَمًا وَيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَائِرَ عَلَيْهِمْ دَائِرَةُ السَّوْءِ وَاللهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٩٨﴾

او ځيني له (صحرايي) اعرابو هغه دي چې نيسي هغه شی چې لګوي (يې په لار د الله کې) محض يو تاوان، او انتظار کوي په تاسې د ګردشونو د زمانې ، پر هم دوی دې وي ګردش د بدی (نه په تاسې)، او الله ښه اورېدونکی دی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسير: يعنې په «منافقينو اعرابو» کې هغه خلق هم شته چې کوم وقت د الله تعالی په لاره کې څه شی ولګوي؛ نو په داسې کراهيت سره يې لګوي، لکه چې دوی کومه جرمانه ورکوي يا تاوان ګالي، دوی تر اوسه پورې هم منتظر دي؛ چې مسلمانان د دهر په حوادثو کې په کوم ګردش او آفت کې مبتلا او اخته شي، او له دغو تاوانونو څخه خلاص شو، او په دې نه دي خبر چې پخپله د دوی په قسمت کې ګردشونه راتلونکي دي، اسلام خو تل غالب او فائق اوسيږي، او دغه منافقان ډېر سخت ذليل او رسوا کېدونکي دي، الله تعالی د هر يوه خبرې او دعاوې اوري، او ښه ورته معلوم دي چې کوم يو د عزت او د برې اهل دی؟ او کوم يو د ذلت او رسوايۍ وړ او مستحق دی؟.

وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبَاتٍ عِنْدَ اللهِ وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ أَلَا إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَهُمْ سَيُدْخِلُهُمُ اللهُ فِي رَحْمَتِهِ إِنَّ اللهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٩٩﴾

او ځيني له (صحرايي) اعرابو څخه هغه دي چې ايمان لرونکي دي په الله او په ورځې آخرې او نيسي (ګڼي ـ شمېري) هغه شی چې لګوي (يې په لاره د الله کې) (اسباب) د نژدېوالي په نزد د الله او (سبب د) دعاګانو د رسول، خبردار شئ چې دغه (خرچ کول سبب د) نژدېوالي دی د دوی، ژر به داخل کړي دوی الله په رحمت خپل کې، بېشکه چې الله ښه مغفرت کوونکی ډېر مهربان دی.

تفسير: دلته يې د قرآن کريم معجزانه تأثير او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حيرت غورځوونکو تعليماتو ننداره راښوولې ده، چې په همدغه څېرو مزاجو، غټ زړو، تندخويو او بې لارو کليوالو او صحرائيانو کې چې د کفر او نفاق، جهل او طغيان لامله د دې خبرې له سره لايق او وړ نه وو، چې د الله تعالی په ښوولو آدابو باندې وپوهېدی شي.

د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د تعليمه او د قرآن عظيم له غږ او تفهيمه په دوی کې داسې عارفان او مخلصان مسلمانان پيدا شول؛ چې پر مبدأ او معاد او نورو ګردو مؤمن به شيانو ايمان لري، او د پاك الله په لاره کې هر شی چې لګوي؛ خالص د الله تعالى د قرب د حاصلولو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دعا د ګټلو په غرض يې کوي، الله تعالى دوی ته زېرى او بشارت ورکوي، چې بېشکه دوی په دغو خپلو اميدونو او هيلو (ارزوګانو) کې حق بجانب دي، يقيناً دوی ته همغه شی ور په برخه کيږي، چې د هغه نيت يې پخپلو زړونو کې کړی وي (يعني د الله تعالى قُرب)، او پاك الله جل جلاله خامخا دوی په خپل رحمت کې داخلوي.

پاتې شوه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دعا، هغه خو دوی پخپلو غوږونو سره اوري، او پخپلو سترګو يې ګوري، چې هر کله کوم سړی ښه کار کوي، او سم له اسلامي احکامو سره زيار او کوښښ کوي، يا صدقات او نور خيرات ورحاضروي؛ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم دهغو په حق کې دعا کوي، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دغې دعاء ثمره هم همغه د الله تعالى رحمت او تقرّب دی، چې د هغه وعده لا له پخوا څخه شوې ده.

وَالسّٰبِقُوْنَ الْاَوَّلُوْنَ مِنَ الْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ وَالَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُمْ بِاِحْسَانٍ ۙ رَّضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَرَضُوْا عَنْهُ وَاَعَدَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ تَحْتَهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۰۰﴾

او هغه وړاندني اولني (ايمان لرونکي) له مهاجرينو نه او له انصارو نه او هغه کسان چې متابعت يې کړی دی د هغوی په احسان (نېکی) سره؛ راضي شوی دی الله له دوی نه، او راضي شوي دي دوی له الله نه، او تيار کړي دي الله دوی ته جنتونه چې بهيږي لاندې د (ونو او ماڼيو د) دوی ويالې، چې تل به وي دوی په هغو کې همېشه، دغه (رضا او جنت) بری دی ډېر لوی.

**په تفسير:** د «أعرابو مؤمنانو» د ذکر څخه وروسته دا مناسبه معلومه شوه، چې د مؤمنينو د زعماوو، أعيانو او مشرانو څه ذکر هم وکړ شي، يعني هغه مهاجرين چې په هجرت کې يې د سبقت او اوليت شرف حاصل کړی دی، او هغه انصار چې په نصرت او اعانت کې د سبقت او اوليت افتخار لرونکي دي، الغرض هغو کسانو چې د حق په قبوليت، او د اسلام په خدمت کې هومره چې دتقدم او وړاندې والي حصه او برخه اخيستې ده، بيا هغه خلق چې له ښو کارونو او حسن نيت د اسلام د دغو مقتديانو متابعت او پيروي کوي؛ همدغو ته درجه په درجه د الله تعالى رضا او خوښي او حقيقي بری حاصل شوی دی، همغسې چې هغوی په پوره خوښۍ او خوشالۍ او د قلب په انشراح سره د الله تعالى د تشريعي احکامو او تکويني قضاوو په مقابل کې خپلې غاړې ږدي؛ په همغه ډول الله تعالى هم دوی ته د خپلې خوښې او رضا سند ورعطا کوي، او په غير محدود انعام او اکرام يې سر لوړوي.

وَمِمَّنْ حَوْلَكُمْ مِّنَ الْاَعْرَابِ مُنٰفِقُوْنَ ۛؕ وَمِنْ اَهْلِ الْمَدِيْنَةِ ۛؔ مَرَدُوْا عَلَى النِّفَاقِ ۫ لَا تَعْلَمُهُمْ ؕ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ ؕ سَنُعَذِّبُهُمْ مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّوْنَ اِلٰى عَذَابٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۰۱﴾

او ځيني له هغو کسانو چې په شاوخوا د تاسې (اهل المدينې) کې دي له صحرايي اعرابو ځنې منافقان دي، او ځيني له مدينې والاوو نه کلك دي په منافقت باندې؛ نه پېژنې ته دوی لره، مونږ پېژنو دوی لره، ژر به عذاب کړو مونږ دوی دوه کرته، بيا به بوتلل شي دوی عذاب ډېر لوی ته.

**تفسير:** يعني ځيني له اهل المدينې او دهغې د شاوخوا ساکنين په نفاق سره عادي او روږدي شوي دي، او پر هغه ټينګ ولاړ دي، ليکن دغه نفاق دومره غريق او عميق دی؛ چې سره له دغه قرب مکاني او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د کمال فطانت او فراست هم تاسې بالتعيين او په قطعي طور سره په محض علاماتو او قرائنو سره د هغو پر نفاق نښې مطلع

کېدی، د هغو په پوره ډول سره تعیین او معلومول يواځې د الله تعالی په علم کې شته، څرنګه چې د عامو منافقينو پته او سراغ له څېرو، شونډو، لهجو، خبرو اترو او نورو څخه موندل کيږي؛ ﴿وَلَوْ نَشَآءُ لَأَرَيْنَٰكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُم بِسِيمَٰهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِى لَحْنِ ٱلْقَوْلِ﴾ د دوی نفاق دومره ژر او عميق دی، چې له هسې ظاهري علائمو سره د دوی پرده نه لري کيږي.

﴿سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيْنِ﴾ الآيه ـ «ژر به په عذاب کړو مونږ دوی دوه کرته بيا به بوتلل شي عذاب ډېر لوی ته چې هغه لوی عذاب د دوزخ دی: ﴿إِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ فِى ٱلدَّرْكِ ٱلْأَسْفَلِ مِنَ ٱلنَّارِ﴾ (۶ جزء د النساء سورت (۱۴۵) آیت (۲۱) رکوع) پخوا له هغه لږ تر لږه خامخا دوه ځلې په عذاب کې مبتلا کيږي، يو د قبر عذاب او دويم هغه عذاب چې په دغه دنيوي ژوندون کې ور رسيدونکی دی، ځنې له دوی څخه په لوږې او نورو ارضي او سماوي آفتونو کې مبتلا شوي، د ذلت په مرګ سره مري، يا د اسلام د ترقي او عروج د ليدلو څخه د حسد او رخې (کينې) او غيظ په اور کې سوځي، او غاښونه او ګوتې سره چيچي، چې هغه هم د دوی په حق کې د روح د سوان په شان وو.

څما په نزد دغه ټول اقسام عذاب د ﴿مَّرَّتَيْنِ﴾ په احاطه کې داخل دي، او دغه عدد يا خو د مطلق تعداد لپاره دی لکه په: ﴿ثُمَّ ٱرْجِعِ ٱلْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ﴾ کې، يا له دوو ځلې څخه نوعي اثنينيت مراد دی، يعنې «عذاب القبر» او د «قبل الموت» عذاب، والله أعلم.

وَءَاخَرُونَ ٱعْتَرَفُوا۟ بِذُنُوبِهِمْ خَلَطُوا۟ عَمَلًا صَٰلِحًا وَءَاخَرَ سَيِّئًا عَسَى ٱللَّهُ أَن يَتُوبَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٠٢﴾

او ځينې نور دي چې قائلان شوي دي په ګناهونو خپلو، ګډ کړي دي دوی نېک عمل، او بل بد عمل، قريب دی چې الله به رجوع وکړي په دوی باندې (په قبول د توبې)، بېشکه چې الله ښه بخښونکی د خطياتو ډېر رحم کوونکی دی پر تائبانو.

تفسير: په اهل المدينه کې که له يوه لوري دغه منافقين او متمردين دي چې خپل شرارتونه او جرمونه او نفاق په پرده کې پټوي، او په هغوی باندې په سختۍ سره ولاړ دي، نو د بل لوري ځينې هغه مسلمانان دي چې له هغو ځنې د بشريت په مُقتضی که کومه خطا او قصور واقع کيږي؛ نو نادمان کيږي او بلا تأمّل پخپلو ګناهونو اقرار کوي، د دوی نيکې او بدې سره ګډوډ دي، بدې خو مثلاً دغه ده، چې سره د (جهاد) د عام نفير د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په دعوت د «تبوک» غزا ته حاضر نشول، بيا په دغه غير حاضرۍ باندې له زړه پښېمانېدل او متأسف کېدل او ظاهراً او باطناً توبه ايستل او د نورو صالحه وو اعمالو لکه لمونځ، روژه، زکات، حج يا په نورو غزواتو کې شرکت او نور په ځای راوړل، دغه ټول د دوی د نېکيو په فهرست کې داخل دي؛ نو داسې حضراتو ته الله تعالی د معافۍ اميد ورکړی دی.

مفسرينو ليکلي دي چې دغه آيت د «أبو لبابة رضي الله تعالی عنه» او د ده د څو نورو ملګرو په حق کې نازل شوی دی، چې محض د کسل لامله «تبوک» ته حاضر نه شول، ليکن کله چې د «تبوک» نه د پاک رسول صلی الله عليه وسلم د بېرته راتګ څخه خبر شول، نو په ډېر ندامت او افسوس سره دوی ټولو خپل ځانونه د مسجد تر ستنو پورې کلک وتړل، او ګردو قسم سره ياد کړ، تر څو چې مو رسول الله صلی الله عليه وسلم پخپل مبارک لاس خلاص نه کړي؛ مونږ به هم داسې کلک تړلي ولاړ اوسو، کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی په داسې حال کې وليدل؛ نو ويې فرمايل: «والله تر څو چې الله تعالی د دوی د پرانيستلو حکم رانکړي؛ زه يې نشم پرانيستلی»، بالآخر دغه آيت نازل شو؛ نو رسول الله صلی الله عليه وسلم د هغو غوتې وپرانيستلې او د توبې د قبول بشارت يې ورکړ، وايي چې دغه کسان له خلاصېدو څخه وروسته د توبې د تکميل په ډول له څه اموالو سره حاضر شول، چې د الله تعالی په لاره کې يې تصدق کړي، نو په دې مناسبت دغه وروستنی آيت نازل شو.

خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً

واخله (ای محمده !) له مالونو د دوی صدقه (زکات یا خیرات).

تفسیر: محقق شیخ الهند د «صدقې» ترجمه په «زکات» سره کړې ده، لیکن که د «صدقې» لفظ عام واخیستل شی، چې «زکات» او نورو نافله وو صدقاتو لره هم شامل شي؛ نو ښه به وي، ځکه چې له اکثرو روایتونو سره سم دغه آیت د هم هغو سړیو په حق کې نازل شوی دی، چې وروسته له معافی د توبې د تکمیل په ډول له صدقاتو سره حاضر شوي وو، لکه چې اوس په ړومبنی فائده کې نقل شوي دي.

تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَوٰتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٠٣﴾

چې ښه پاک کړې ته دوی له ګناهونو او بابرکته کړې ته دوی د هغه په وسیله، او دعا (د نېکۍ) وکړې دوی ته، بېشکه چې دعا ستا تسکین دی دوی ته، او الله ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسیر: په «توبه» سره ګناه معافیږي، یعنې مؤاخذه د عذاب نه پرې پاتې کیږي، لیکن یو قسم باطني کدورت او ظلمت او نور (چې د ګناه د طبیعي اثراتو څخه ده) ممکن دي پاتې وي، چې بالخصوص له صدقې او عموما د حسناتو په کولو سره زائله کیږي، نو په دې لحاظ سره ویلی شو چې: صدقه دګناهونو له اثراتو څخه سړی بیخي پاک او صاف ګرځوي، او د اموالو برکت زیاتوي.

أَلَمْ يَعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَأْخُذُ الصَّدَقَاتِ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾

آیا نه پوهېدل دغه (تائبان) په دې چې بېشکه الله هم دی قبلوي توبه له بندګانو خپلو او اخلي، قبلوي صدقات او (نه پوهیږي په دې چې) بېشکه الله هم دی ښه توبه قبلوونکی ښه رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعنې د توبې او د صدقاتو قبلول یواځې د الله تعالی په اختیار کې دي، ځکه چې همغه ته ښه معلوم دي، چې کوم یوه د زړه په اخلاص او د قبول د شرائطو له رعایته سره سمه توبه ایستلې، یا صدقه یې ورکړې ده، لکه چې پخوا له دې نه پر څینو باندې عتاب صادر شوی دی، او د همېشه لپاره د دوی د صدقاتو منل مردود درولي شوي دي، او د دوی په حق کې دعا او استغفار هم بې فائدې ښوولی شوی دی، بلکه د دوی جنازه کول هم ممنوع ګرځولی شوي دي، د دغو کسانو ذکر چې دلته کړی شوی؛ د هغو توبه یې منظوره او د صدقاتو د قبولیت حکم یې ورکړ، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د دوی په حق کې (حیّاً او میّتاً) دعا وکړې.

وَقُلِ اعْمَلُوا فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ وَسَتُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) عمل کوئ تاسې ! نو ژر به ویني الله عمل ستاسې او رسول د ده (به یې هم ویني) او مؤمنان (به یې هم ویني)، او ژر به بیا بوتلی شئ تاسې (په بعث سره) عالم د پټو او ښکاره وو (الله) ته؛ نو خبر به کړي (الله پاک) تاسې په هغه سره چې وئ تاسې چې کول به مو.

تفسير: يعنې په توبه او نورو ښيانو سره ستاسې تېر تقصيرات معاف شول، وروسته به وليدل شي چې تاسې تر کومه ځاى پورې د صدق او استقامت عملي ثبوت راوړاندې کوئ؟ که په دغه جهاد کې له تاسو څخه قصور صادر شوى دى، وروسته له دې نه نور جهادونه هم کېدونکي دي، او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د راشدينو خلفاوو په مخ کې به له تاسې څخه امتحان واخيستل شي، او وبه کتل شي، چې تاسې څه ډول عمل کوئ؟ بيا به په قيامت کې له پاک الله سره مخامخ کېږئ، او د خپل د هر عمل پوره بدل به ومومئ، ځکه چې همغه پر ګردو پټو او ښکاره وو ښيانو او ظاهري اعمالو او باطني نياتو باندې خبردار او مطّلع دى، او له هر يوه سره د ده د واقعي حالت سره موافق معامله کوي.

وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ اِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَاِمَّا يَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ﴿۱۰۶﴾

او نور کسان دي (له دغو پاتې شويو له غزا نه) چې وروسته کړى شوي دي لپاره د حکم کولو د الله په دوى کې؛ يا به په عذاب کړي وى يا به په مهرباني وکړي پر دوى د توفيق د توبې، او الله ښه عالم دى، ښه حکمت والا دى.

تفسير: د اهل المدينې څخه دلته د يوه وړوکي جماعت ذکر فرمايي، اصلي خبره دا ده چې د «تبوک» د غزوې متخلفين يعنې هغه کسان چې په «تبوک» کې نه وو شريک شوي؛ درې قسمه وو:

(۱): منافقين چې د شک او نفاق لامله ببل پاتې شوي وو، (۲): هغه کسان چې د سستى او ځان هوسايى (آرامى او آسانتيا) لامله په غزا کې نه وو شريک شوي، بيا دوى کې هم دوه قسمه سړي وو، على الأکثر هغه کسان وو چې د پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم د بېرته راتللو په وقت کې دوى خپل ځانونه د مسجد په ستنو پورې تړلي وو، چې د هغو ذکر په پخوانيو آيتونو کې تېر شو، يواځې يو جماعت د درې سړيو داسې وو، چې نه دوى خپل ځانونه په ستنو تړل، او نه کوم عذر او بهانه يې وروړاندې کړه، او يواځې همغه حقيقي واقعه يې بې له تزييده او تنقيصه په صافو صافو الفاظو د رسول الله په مخ کې عرض وکړ، نو د دوى په باره کې دغه د ﴿وَاٰخَرُوْنَ مُرْجَوْنَ لِاَمْرِ اللّٰهِ﴾ آيت نازل شو، يعنې د دوى په معاملې کې اوس تعطيل او انتظار دى، تر څو ورځو پورې د پاک الله حکم ته منتظر اوسئ، يا به الله تعالى هغو ته سزا ورکوي يا به يې بخښي او معافوي به يې، د دغو واقعاتو او د درې واړو نومونو تفصيل د وروستنى رکوع په خاتمه کې شروع کېږي.

وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا وَّتَفْرِيْقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَاِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ ۗ وَلَيَحْلِفُنَّ اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّا الْحُسْنٰى ۗ وَاللّٰهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ ﴿۱۰۷﴾

او ځيني هغه (منافقان) دي چې نيولى (جوړ کړى) دى دوى مسجد لپاره د ضرر رسولو (مؤمنانو ته) او لپاره د کفر او لپاره د بيلتون آچولو په منځ د مؤمنينو کې او لپاره د انتظار (او مورچه) لپاره د هغه چا چې جنګ يې کړى دى له الله سره او د هغه له رسول سره پخوا (له دې نه)، او خامخا قسمونه خوري هرومرو دوى چې اراده نه ده کړې مونږ (په جوړولو د مسجد سره) مګر د نېکى، او الله شاهدي اداء کوي چې بېشکه دوى هرومرو دروغجنان دي (په دغو خپلو قسمونو کې).

تفسير: دلته د داسې يوه جماعت ذکر دى، چې په ښکاره سره هغوى ښه کار (تعمير د مسجد) کړى دى، ليکن د بد اعتقادۍ لامله هغه د دوى د ځان وبال وګرځېده.

دغه واقعه داسې وه، کله چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم له مکې څخه هجرت وکړ، نو د مدينې څخه د باندې د «بني عمرو بن عوف» په محلې کې يې واړول، او هلته يې د مسجد قباء بنياد کېښود، او څو ورځې وروسته يې د

مدینې منورې ښار ته تشریف راوړو، او نبوي مسجد یې تعمیر کړ، او رسول الله صلی الله علیه وسلم به هر خالي (شنبه) د مسجد قباء زیارت ته تللو، او دوه رکعته لمونځ به یې کاوه، او د هغه ډېر فضائل یې بیان کړه.

کله چې اسلام ورو ورو په مدینه منوره کې قوي کېده؛ نو د هغه ځای منافقینو به د اسلام په ضد تخریب کولو لپاره رنګارنګ توطئې او پروګرامونه جوړول، یو د دغو څخه دا وو، چې ځنې منافقینو د أبو عامر الراهب په اشاره د مسجد قباء نژدې یوه بله ودانی د مسجد په نامه جوړه کړه، او غوښتل یې چې خپل جماعت سره بېل کړي، او په دې چال کې یې ځنې ناپوه او ساده مسلمانان د مسجد قباء څخه خپلو ځانونو سره مل کړي وه.

نو منافقینو د خپلو خبیثو مقاصدو لپاره د قُباء مسجد په مقابل کې د ضرار مسجد ودان کړ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخ کې داسې بهانه وکړه، چې ځمونږ نیتونه بد نه دي، خو د باران او یخنۍ او رنځورانو له امله چې د قباء تر مسجد پورې ورته تګ ډېر سخت او مشکل دی؛ نو ځکه مو دغه مسجد ودان کړ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې هلته د یو ځل لمونځ کولو لپاره د ورتلو خواهش وکړ، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې په دغه وخت کې د (تبوک) غزا ته د تللو لپاره تیاری کړی وو؛ نو هغوی ته یې وویل: که الله تعالی اراده وکړي، نو د (تبوک) نه د بېرته راتګ په وخت کې به درشم.

نو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د (تبوک) د غزا څخه فارغ شو، او مدینې ته نژدې شو؛ نو جبرئیل علیه السلام دا آیت راوړه، چې په دې یې رسول الله صلی الله علیه وسلم د منافقینو په ناپاکو اغراضو باندې مطلع او خبر کړ، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه کرامو ته حکم ورکړ، چې ډېر ژر دغه ظالم مسجد ته ورشي، او اور ورته واچوي، او د خاورو سره یې خاورې کړي، نو هغوی علی الفور اور ورته کړ، او د خاورو سره یې خاورې کړ، په دې ډول د منافقینو او د فاسق أبو عامر ټول ارمانونه د دوی په زړونو کې غوټه پاتې شول.

په دې آیت کې د ﴿لِمَنْ حَارَبَ اللهَ وَرَسُولَهُ﴾ څخه دغه فاسق ابو عامر مراد دی.

لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا ۚ لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَىٰ مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُومَ فِيهِ ۚ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ۚ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ﴿١٠٨﴾

مه دریږه ته په دغه (مسجد کې لپاره د لمانځه) له سره هیڅکله، خامخا هغه مسجد چې ایښې شوی دی (تاداو - بنیاد یې) پر تقوی (پرهېزګارۍ)؛ له اولې ورځې ډېر لایق د دې دی، چې ودرېږې ته په هغه کې (لپاره د لمانځه)، په دغه (مسجد) کې داسې سړي دي چې خوښوي دوی دا چې ښه پاک وساتي دوی (ځانونه خپل د ګناهونو او نجاساتو نه)، او الله محبت کوي د ښه ځان پاکوونکو سره.

تفسیر: یعنې «په دغه مسجد کې چې د هغه تاداو (بنیاد) محض په ضد، کفر، نفاق او د اسلام په عداوت او د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخالفت باندې ایښې شوی دی، تاسې له سره د لمانځه لپاره مه درېږئ»، ستاسې د لمانځه وړ هغه مسجد دی، چې د هغه تاداو (بنیاد) له اولې ورځې راهیسې پر تقوی او پرهېزګارۍ قائم شوی دی (اعم له دې چې نبوي مسجد وي که د قباء مسجد وي)، چې د هغو لمونځ کوونکي له هر راز ظاهري او باطني نجاستونو او ګناهونو او شرارتونو څخه د خپلو ځانونو د پاکولو او صاف ساتلو اهتمام کوي، نو ځکه پاک الله هم دوی سره محبت کوي.

په حدیث کې راغلي دي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د اهل قباء څخه پوښتنه وکړه چې: «تاسې د طهارت او پاکیزه ګۍ څه خاص اهتمام کوئ چې پاک الله ستاسې د تطهیر مدح فرمایلې ده؟» دوی وویل چې: «مونږ وروسته

د لوټې د استعمالولو څخه په اوبو سره هم استنجاء کوو»، يعنې له عمومي ظاهري او باطني طهارت څخه برسېره دغو خلقو د دې شي اهتمام د عادت څخه زيات کاوه، له دې نه ظاهرېږي چې په دغه آيت کې د قباء د مسجد ذکر دی، ليکن په ځينو نورو روايتونو کې بالتصريح راغلي دي چې د ﴿لَمَسۡجِدٌ أُسِّسَ عَلَى ٱلتَّقۡوَىٰ﴾ څخه نبوي مسجد مراد دی، په دې اساس په دواړو مسجدونو باندې دغه صفت صادق دی.

أَفَمَنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ تَقۡوَىٰ مِنَ ٱللَّهِ وَرِضۡوَٰنٍ خَيۡرٌ أَم مَّنۡ أَسَّسَ بُنۡيَٰنَهُۥ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٖ فَٱنۡهَارَ بِهِۦ فِي نَارِ جَهَنَّمَۗ وَٱللَّهُ لَا يَهۡدِي ٱلۡقَوۡمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٠٩﴾

آيا نو هغه څوک چې اېښې يې وي تاداو د ودانۍ خپلې پر تقوی (وېرې) باندې له الله څخه، او په رضامندۍ (د الله سره) غوره دی، يا هغه څوک چې اېښې يې وي تاداو د ودانۍ خپلې په غاړې د کندې نړېدونکې باندې؛ نو ونړېږي سره له جوړوونکي په اور د دوزخ کې؟ او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم ظالمانو ته.

تفسير: يعنې د هر هغه کار تاداو او بنياد چې په تقوی، يقين، اخلاص او د الله تعالی پر رضا غوښتلو باندې وي، هغه ډېر مستحکم او ټينګ وي، په خلاف د هر هغه کار چې بنا يې په شک، نفاق، مکر، خداع او فرېب باندې وي، هغه د خپلې ناپايدارۍ، سستۍ او بد انجامۍ په لحاظ داسې دی لکه چې کوم عمارت د يوه داسې خاورين پاڼ په سر باندې ولاړ وي، چې د رود اوبو د هغه بيخ بيخي وړی وي، چې که لږ شانې دغه په يوه وېښته ولاړ پاڼ وخوځېږي، يا د سيلاب کومه چپه وررسيږي؛ نو دغه عمارت سره له پاڼه يو ځای لاندې په اوبو کې لوېږي، او بالآخر د دوزخ کندې ته وررسيږي.

لَا يَزَالُ بُنۡيَٰنُهُمُ ٱلَّذِي بَنَوۡاْ رِيبَةٗ فِي قُلُوبِهِمۡ إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١١٠﴾

همېشه به وي ماڼۍ ـ ابادي د دوی هغه چې جوړه کړې وه دوی موجب د شبهې، د شک او د نفاق په زړونو د دوی کې، مګر چې ټوټې ټوټې شي زړونه د دوی (يعنې مړه شي)، او الله ښه عالم دی، ښه حکمت والا دی (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: د «ريبت» ترجمه يې په «شبهه» سره کړې ده، چې له هغې څخه مراد نفاق دی، يعنې د دغه بد عمل اثر داسې شو؛ چې تل د هغو په زړونو کې (تر هغه پورې چې مرګې دوی ټوټې ټوټې نه کړي) نفاق ټينګ او قائم پاتې کيږي، لکه چې د دې سورت په ابتداء کې تېر شوي دي: ﴿فَأَعۡقَبَهُمۡ نِفَاقٗا فِي قُلُوبِهِمۡ إِلَىٰ يَوۡمِ يَلۡقَوۡنَهُۥ بِمَآ أَخۡلَفُواْ ٱللَّهَ مَا وَعَدُوهُ وَبِمَا كَانُواْ يَكۡذِبُونَ﴾.

إِنَّ ٱللَّهَ ٱشۡتَرَىٰ مِنَ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ أَنفُسَهُمۡ وَأَمۡوَٰلَهُم بِأَنَّ لَهُمُ ٱلۡجَنَّةَۚ يُقَٰتِلُونَ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ فَيَقۡتُلُونَ وَيُقۡتَلُونَۖ وَعۡدًا عَلَيۡهِ حَقّٗا فِي ٱلتَّوۡرَىٰةِ وَٱلۡإِنجِيلِ وَٱلۡقُرۡءَانِۚ وَمَنۡ أَوۡفَىٰ بِعَهۡدِهِۦ مِنَ ٱللَّهِۚ فَٱسۡتَبۡشِرُواْ بِبَيۡعِكُمُ ٱلَّذِي بَايَعۡتُم بِهِۦۚ وَذَٰلِكَ هُوَ ٱلۡفَوۡزُ ٱلۡعَظِيمُ ﴿١١١﴾

بېشکه چې الله پيرودلي (اخيستلي) دي له مؤمنينو څخه نفسونه د دوی، او مالونه د دوی؛ په عوض د دې چې بېشکه شته دوی لپاره جنت، (دغه پيرودل ـ اخيستل په دې شان دي چې) جنګونه کوي دوی په لاره د الله کې، نو وژني مؤمنان (دا کفار)، او وژلی شي دغه مؤمنان (د کفارو له لوري)، وعده ده په دغه (الله) باندې وعده حقه په تورات کې او په انجيل کې او په قرآن کې، او څوک دی ښه وفا کوونکی په وعدې خپلې سره له الله څخه (بلکه هيڅوک نشته)؛ نو خوشاله

شئ تاسې (ای مؤمنانو) په بیع ستاسې باندې هغه چې معامله کړې ده تاسې له الله سره په هغې، او دغه (بیعه چې ده) همدغه بری دی ډېر لوی.

تفسیر: له دې نه زیات ګټور او فائدمن تجارت او عظیم الشأن بری به څه وي؟ چې څمونږ د حقیرو ځانونو او فاني أموالو خریدار الله قُدّوس ګرځېدلی دی، څمونږ ځان او مال چې في الحقیقت د همغه پاک الله مملوک او مخلوق دی، محض په أدنی مُلابست سره څمونږ په لوري نسبتوي (او مبیعه) یې دروي، چې په «عقد د بیع» کې مقصود بالذات وي، او د جنت په شان یو ډېر أعلی مقام یې د هغه «ثمن» راوښود، چې «مبیعې» ته د رسېدلو وسیله ده.

نو کله چې موقع او وقت راشي؛ نو ځان او مال د پاک الله په لاره کې په اخلاص سره وړاندې کړئ، او د دغه عالي مقصد لپاره مو ځانونه او مالونه تل تیار او مهیا لرئ ! او د هغو په ورکولو کې بخل او شومتیا مه کوئ ! اعمّ له دې نه چې هغه یې واخلي که یې وانه خلي، ښایې چې هغه د ده په دربار کې تل حاضر او تیار اوسي، نو ځکه یې وفرمایل: ﴿يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ﴾ یعنې مقصود د الله تعالی په لاره کې د ځان اومال حاضرول دي، وروسته له هغه که ووژنئ کفار یا ووژل شئ د کفارو له لاسه؛ په دغو دواړو صورتونو کې د «بیع عقد» پوره کیږي، او په یقیني ډول سره د «ثمن» یعنې د جنت مستحق ګڼل کیږئ.

ممکن دی چې ځینو ته دغسې کومه وسوسه ور په زړه شي چې معامله خو ښېشکه ګټوره او فائده منه ده، لیکن نقد «ثمن» یې چېرې دی؟ د هغه ځواب یې داسې ورکړ: ﴿وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنجِيلِ وَالْقُرْآنِ﴾ یعنې د ثمن او د زړو د سوځېدلو هیڅ یوه وېره او خطر نشته، الله تعالی په ډېر تاکید او اهتمام سره پوخ سند او دستاوېز لیکلی دی، چې د هغه خلاف غیر ممکن دي.

﴿التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدُونَ الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللَّهِ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ١١٢﴾

(دوی) توبه کوونکي دي، عبادت کوونکي دي، شکر کوونکی دي (الله ته په اخلاص)، بې تعلق پاتې کېدونکي دي (د دنیوي لذائذو نه) رکوع کوونکي دي سجدې کوونکي دي، حکم کوونکي دي په معروف (نېکو کارونو)، او منع کوونکي دي له منکرو (بدو کارونو)، او ساتونکي دي د حدودو د الله، او زېری ورکړه (ای محمده !) مؤمنینو ته (چې موصوف دي په دغو صفاتو په جنت سره).

تفسیر: ځینې له «السائحون» څخه «روژه نیوونکي» مرادوي، ځکه چې روژه دار د خوړلو او څښلو او نورو شهوانیو لذائذو، او نفسي مرغوباتو څخې بې تعلقه وي، د ځینو نورو په نزد د دغه لفظ مصداق «مهاجرین» دي، چې د خپلو کورونو او کهولونو څخه بې تعلقه شوي دي، او په «اسلام» کې یې هستوګنه کړې ده، ځینې له دې څخه «مجاهدین» اراده کوي، ځکه مجاهد له خپله ځانه بې تعلقه کیږي، او د الله تعالی په لاره کې د سر جارولو (قربانولو) لپاره راوځي، د اکثرو اسلافو په نزد هغه اوله ترجمه مختاره ده، والله أعلم.

شاه صاحب فرمایلي دي: «ښایي د بې تعلقه پاتې کېدو څخه دا مراد وي چې په دنیا پورې زړه ونه تړي».

﴿الْآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ﴾ : یعنې د خپلو ځانونو د اصلاح او سنبالولو سره د نورو ځانونه هم اصلاح کوي او سنبالوي.

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١١٣﴾

نه دي لايق او روا نبي ته او هغو كسانو ته چې ايمان لرونكي دي چې مغفرت وغواړي دوی لپاره د مشركانو او اګر كه وي دا خاوندان د خپلوۍ وروسته له دې خبرې چې ښكاره شي دوی ته چې بېشكه دوی صاحبان دي د دوزخ !.

تفسير: هر كله چې مؤمنينو خپل ځانونه او مالونه پر الله تعالى پلورلي (خرڅ كړي) دي، نو دغه خبره ضروري ده چې له نورو ټولو ځنې ځانونه راټول كړي، او يواځې پاك الله ته خپل ځان وسپاري، له اعداء الله وو څخه دې چې د هغوی دښمني له الله سره او جهنمي او دوزخيتوب يې معلوم شوی دی؛ د خپلو مهربانيو او محبت سلسله وشلوي، اګر كه دغه د الله تعالى دښمنان د ده مور او خور، پلار او بادار (مالك)، ترور او نګور، تره او تربور، نيكه او نيا او نور مخصوص خپلوان هم وي، ځكه هغه چې له الله تعالى څخه باغي او د ده دښمن وي؛ نو هغه د مؤمنانو څرنګه دوستان او خپلوان كېدی شي؟ نو د هر هغه چا چې په نسبت داسې معلومات حاصل شي، چې باليقين دوزخي دی، اعم له دې نه چې د الله تعالى په وحي سره وي، يا چې په ښكاره ډول سره پر كفر او شرك كې مړ شي، نو د دوی په حق كې استغفار او د بخښنې غوښتنه منع ده.

په ځينو روايتونو كې راغلي دي، چې دغه آيت د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مور «بي بي آمنې» په باره كې نازل شوی دی، په ځينو احاديثو كې راغلي دي، چې د رسول الله مبارك تره «ابو طالب» باره كې نازل شوی دی، او ځينو داسې نقل كړی دی، چې مسلمانانو وغوښتل چې د خپلو هغو مشركينو پلرونو لپاره چې مړه شوي دي؛ استغفار وغواړي، نو په دغه آيت سره دوی د هغوی له استغفاره منع شول.

په هر حال د دې آيت شان نزول هر څه چې وي، حكم خو همدغه دی چې د هغو كفارو او مشركينو په حق كې چې دهغوی خاتمه پر كفر او شرك باندې معلومه شي؛ استغفار ناجائز دی.

وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ ﴿١١٤﴾

او نه وه بخښنه غوښتل د ابراهيم لپاره د پلار خپل مګر په سبب د وعدې چې كړې وه ابراهيم د هغه سره (چې بخښنه به درته غواړم)، نو كله چې معلومه شوه ابراهيم ته چې بېشكه دغه پلار د ده دښمن دی د الله؛ نو بېزاره شو له هغه، بېشكه ابراهيم خامخا ډېر آه كوونكی (نرم زړی) ډېر تحمل والا وو.

تفسير: د ﴿وَعَدَهَآ إِيَّاهُ﴾ ترجمه ځينو داسې كړې ده: كړې وه دغه وعده ابراهيم د خپل پلار سره لكه چې د «مريم» عليها السلام په سورت كې راغلي دي، كله چې د ابراهيم عليه السلام پلار د حق له قبوله اعراض وكړ، او د ضد او عناد له سببه يې ابراهيم عليه السلام په وژلو سره وېراوه، نو د خپلو والدينو د ادب په ملاحظه يې وفرمايل: ﴿قَالَ سَلَٰمٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّيٓ إِنَّهُۥ كَانَ بِى حَفِيًّا﴾، يعنې: «زه دالله تعالى له درباره ستا لپاره استغفار غواړم» نو دوی سم له دغې وعدې سره تل استغفار كاوه، لكه چې په بل ځای كې د ﴿وَاغْفِرْ لِأَبِيٓ﴾ د فرمايلو تصريح هم شته، د دې مطلب داسې نه دی چې ابراهيم عليه السلام د يوه هسې مشرك لپاره بخښنه غواړي، چې هغه د شرك په حالت كې قائم وو، نه، غرض يې داسې وو چې: هغه ته داسې يو توفيق ور په برخه شي چې د شرك له حالته ووځي، او د اسلام په غېږ كې ننوځي، او د اسلام قبول د هغه د خطاوو دمعافۍ سبب شي: «إن الإسلام يهدم ما قبله».

کله چې لويو اصحابو د ابراهيم عليه السلام دغه استغفار په قرآن کې ولوست، نو د دوی په زړنو کې هم دغه خيال پيدا شو، چې مونږ ته هم ښايي چې د خپلو مشرکينو پلرونو په حق کې استغفار وکړو، د دې خبرې ځواب الله تعالی داسې ورکړ، چې ابراهيم عليه السلام د خپلې يوې وعدې په بناء يواځې تر هغه وقته پورې د خپل پلار لپاره بخښنه غوښتله؛ چې په يقيني ډول سره ورته دا خبره نه وه واضحه شوې چې د ده پلار (آزر) په کفر او شرک او د الله تعالی پر دښمنۍ باندې مري، ځکه چې پخوا له مرګه احتمال وو، چې توبه وباسي، او په اسلام مشرّف شي او وبخښلی شي.

نو کله چې ابراهيم عليه السلام ته دغه خبره څرګنده شوه، چې د هغه خاتمه په کفر او شرک سره وشوه، او تر مرګه پورې يې د الله تعالی د دښمنۍ څخه لاس وانخيست؛ نو ابراهيم عليه السلام هم ترې بيخي بېزاره شو، او دعاء او استغفار او نور يې ترک کړل، پخوا يې د زړه د نرمۍ او شفقت لامله دعا کوله، کله چې دتوبې او د رجوع کولو ګرد احتمالات منقطع شول؛ نو ده هم د هغه د خير غوښتلو څخه لاس واخيست، او دغه حادثه يې د نبوّت په صبر او تحمّل سره وځغمله.

وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ إِذْ هَدَاهُمْ حَتَّىٰ يُبَيِّنَ لَهُم مَّا يَتَّقُونَ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾

او نه دی الله چې بې لارې کړي هيڅ يو قوم وروسته له هغه وقت چې لاره يې وښووله دوی ته (د اسلام) تر هغه پورې چې بيان کړي دوی ته هغه څيز چې ځان ترې وساتي، بېشکه الله پر هر څيز باندې ښه عالم دی.

تفسير: يعني د حجّت له اتمامه وړاندې او د حق له اظهاره پخوا پاک الله هيڅوک نه ګمراه کوي، ګمراهي دغه ده کله چې الله تعالی خپل احکام په صاف او ښکاره ډول بيان کړي، او بيا د هغه امتثال ونشي، ګواکې اشاره يې وفرمايله: هغو کسانو چې پخوا له ممانعته يې د مشرکينو لپاره بخښنه غوښتلې ده، پر هغو باندې هيڅ يوه مؤاخذه نشته، ليکن وروسته له خبرېدلو څخه داسې کار کول ګمراهي ده.

إِنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ يُحْيِي وَيُمِيتُ ۚ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١١٦﴾

بېشکه چې خاص الله لره دی سلطنت (بادشاهي) د آسمانونو او د ځمکې، ژوندي کول او مړه کول کوي، او نشته تاسې ته بې له الله څخه هيڅ ولي دوست او نه مددګار.

تفسير: کله چې سلطنت د ده دی؛ نو ښايي حکم هم پرې د هغه وچليږي، دی په خپل محيط علم او کامل قدرت سره هر هغه احکام چې نافذ کړي؛ د بندګانو تکليف او کار دا دی چې بې خوفه او بېخطره د هغه په تعميل او اجراء کې بوخت، مشغول او لګيا شي، او په هغه وخت کې د هيچا خاطر او لحاظ ته موقع او ځای ورنه کړي، ځکه چې بې له الله تعالی څخه بل هيڅوک پکار راتلونکی نه دی.

لَّقَد تَّابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ وَالْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ مِن بَعْدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٍ مِّنْهُمْ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٧﴾

خامخا په تحقيق رجوع کړې ده الله په رحمت پر نبي باندې او پر مهاجرينو او انصارو هغو کسانو چې متابعت کړی وو دوی د نبي د تنګسې او سختۍ په وخت کې وروسته له هغه چې نژدې

شوي وو چې کاږه شي زړونه د يوې ډلې له دوی، بيا رجوع په رحمت سره وکړه الله پر دوی، بېشکه چې هغه پر دوی ډېر مهربان زيات رحم کوونکی دی.

تفسير: د دې مشکل ساعت څخه مراد د «تبوک» د غزوې زمانه ده، چې په هغې کې څو قسمه مشکلات راټول شوي وو: سخته ګرمي، اوږده مسافه، د خرماوو موسم، د هغې زمانې د عظيم الشأن يو سلطنت سره مقابله او پرې د اسلامي لښکر تعرض، بيا د ظاهري بې سروساماني داسې حالت وو، چې يوه يوه دانه خُرما به هره ورځ پر دوو تنو غازيانو باندې وېشله کېده، په آخره کې دې خبرې ته هم وار ورسېده، چې ډېرو مجاهدينو به فقط يوه دانه خُرما په خوله څېښله، او بيا به يې پرې اوبه څښلې، بيا د اوبو د فقدان او نشتوالي لامله د اوښانو د فضلاتو په لندبلو به يې ساعت تېراوه، سورلۍ په دغه اندازه لږه وه، چې په لسو لسو تنو به يو اوښ ور رسېده، چې په نوبت سره يو سورېده او بل به ترې ښکته کېده، د همغه ايثار جذبه او د ځان جارولو او قربانولو جوش وو، چې د اسلامي ډېر يو وړوکي جماعت ته داسې قوت او قدرت ور په برخه کړی شوی وو، چې په هغه سره د دنيا پر ټولو اقوامو باندې غالب او ټول جهان دعلم او عرفان، عدل او احسان په رڼا سره روڼ شو، لله الحمد والمنّه !.

﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٖ مِّنۡهُمۡ﴾ الآيه ـ «وروسته له هغه چې نژدې شوي وو چې کاږه شي زړونه د يوې ډلې له دوی»، د ځينو مؤمنينو زړونه هم د مشکلاتو او صعوباتو سختيو له هجومه پرېکېدل او لړزېدل، او نژدې وو چې د نبي صلی الله عليه وسلم له رفاقته وروسته پاتې شي، الله تعالی بيا پر دوی مهرباني وکړه، او لاسونه يې ونيوه چې دوی له سره پر داسې خطراتو او وساوسو باندې عمل ونه کړي، او محفوظ ترې پاتې وي، او د مؤمنينو همّتونه يې مضبوط او د دوی ارادې يې لوړې کړې.

وَعَلَى ٱلثَّلَٰثَةِ ٱلَّذِينَ خُلِّفُواْ حَتَّىٰٓ إِذَا ضَاقَتۡ عَلَيۡهِمُ ٱلۡأَرۡضُ بِمَا رَحُبَتۡ وَضَاقَتۡ عَلَيۡهِمۡ أَنفُسُهُمۡ وَظَنُّوٓاْ أَن لَّا مَلۡجَأَ مِنَ ٱللَّهِ إِلَّآ إِلَيۡهِ ثُمَّ تَابَ عَلَيۡهِمۡ لِيَتُوبُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ هُوَ ٱلتَّوَّابُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١١٨﴾

او خصوصاً پر هغو درې تنو چې ېبرته پاتې شوي وو تر هغه پورې چې تنګه شوه پر دوی ځمکه سره له ارتوالي د دې (ځمکې)، او تنګ شو پر دوی زړونه د دوی (له ډېره غمه)، او يقين يې وکړ چې نشته ځای د پناه له (قهره د) الله مګر هم ده ته دی، بيا رجوع وکړه (الله پاک) پر دوی لپاره د دې چې توبه وباسي دوی، بېشکه چې الله همدی دی ښه توبه قبلوونکی، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: دغه درې سړي (کعب بن مالک، هلال بن أبي أمية او مرارة بن الربيع) دي، چې سره له دې چې مؤمنان او مخلصان وو، خو د ځان اساني او هوسايۍ (آرامی) خوښولو په اثر بې له شرعي عذره د «تبوک» د غزوې له شرکته محروم پاتې شول، کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم بېرته تشريف راوړ، نو دوی نه د منافقينو په شان د دروغو عذرونه وړاندې کړل، او نه يې د ځينو صحابه وو غوندې خپل ځانونه په ستنو وتړل، لکه هغه حقيقي واقعه يې په صافو الفاظو سره عرض کړه، او پخپل قصور او کوتاهۍ باندې يې په ښکاره او علانيه ډول اعتراف او اقرار وکړ، نتيجه داسې شوه چې د منافقينو له لوري په ښکاره ډول سره اغماض وکړ شو، او د هغوی بواطن الله تعالی ته وسپارلی شو، او د «أصحاب السّوراي» يعنې د هغو کسانو چې خپل ځانونه يې پر ستنو پورې تړلي وو، توبه قبوله کړه شوه، او د دغو درې واړو فيصله د څه مودې لپاره تأديبا ملتوي پاتې شوه، وروسته د پنځوسو ورځو د تېرېدو څخه د دوی توبه هم قبوله شوه، د بېرته پاتې کېدلو څخه په ﴿ٱلَّذِينَ خُلِّفُواْ﴾ کې هم دغه مطلب دی، لکه چې بخاري شريف کې د

همدغه «كعب بن مالك رضي الله عنه» څخه نقل شوی دی، د تفصيل لپاره يې صحيح بخاري شريف ته رجوع وکړئ.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿١١٩﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی ! وویرېږئ تاسې له الله نه، او شئ (ملګري) سره له صادقانو (چې محمد او اصحاب يې دي).

**تفسير:** يعني له رښتينو سره صحبت وکړئ ! او دهغو په شان کارونه کوئ ! او وګورئ چې دغه درې سړي د رښتيا ويلو په سبب وبخښل شول اومقبول وګرځېدل، منافقانو دروغ وويل، او د الله تعالی وېره يې له خپلو زړونو څخه وویستله؛ نو د جهنّم مستحقان شول.

مَا كَانَ لِأَهْلِ ٱلْمَدِينَةِ وَمَنْ حَوْلَهُم مِّنَ ٱلْأَعْرَابِ أَن يَتَخَلَّفُوا۟ عَن رَّسُولِ ٱللَّهِ وَلَا يَرْغَبُوا۟ بِأَنفُسِهِمْ عَن نَّفْسِهِۦ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ لَا يُصِيبُهُمْ ظَمَأٌ وَلَا نَصَبٌ وَلَا مَخْمَصَةٌ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ ٱلْكُفَّارَ وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِۦ عَمَلٌ صَٰلِحٌ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿١٢٠﴾

نه دي روا مدينې والا وو ته او هغه چا ته چې چاپېر د دوی دي له (صحرايي) عربو څخه دا کار چې بېرته پاتې شي دوی د الله د رسول نه (په تلو د غزا کې) او بهتر او غوره به نه ګڼي خپل ځان درسول الله صلی الله عليه څخه او نه مينه کوي دوی په ځانونو خپلو له نفسه د رسول نه، دغه (وجوبي متابعت او نهي د مخالفت) په سبب د دې دی؛ چې بېشکه دوی چې دي: نه رسيږي دوی ته تنده او نه ستوماني او نه لوږه په لاره د الله کې، او نه ږدي دوی قدمونه پر کوم ځای چې په قهر سره راولي (دغه قدمونه) کفارو لره، او نه رسيږي دوی هيڅ دښمن ته په رسېدلو سره؛ مګر ليکلی شوی دی دوی ته په سبب د هر يوه له دغو مذکوره وو شيانو عمل نيک، بېشکه چې الله نه خرابوي اجر (ثواب) د نيکي کوونکو.

**تفسير:** يعني داسې نه دي پکار چې رسول الله صلی الله عليه وسلم تکليفونه او ربړونه (زحمتونه) وګالي (برداشت کړي)، او مونږ په آرامی او هوسايي (آسانی) سره کښنو، سره له دې چې په دغو پېښو کې اکثره شيان لکه لوږې او تندې رسېدل، تکاليف او ربړونه (زحمتونه) ګالل اختياري امر نه دی، سره له دې د جهاد د نيت په برکت د دغو غير اختياري شيانو په مقابل کې هم صالحه اعمال د دوی د حسناتو په دفتر کې ليکلی کيږي، او په هغو باندې پاک الله دوی ته لوی ثواب او ښه اجر مرحمت فرمايي.

وَلَا يُنفِقُونَ نَفَقَةً صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً وَلَا يَقْطَعُونَ وَادِيًا إِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ ٱللَّهُ أَحْسَنَ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٢١﴾

او نه لګوي دوی (په جهاد کې) هيڅ يوه نفقه وړه او نه لويه او نه قطع کوي هيڅ يو ميدان يا کنده (يعني ځمکه په کفارو پسې)؛ مګر خو ليکلی شي هغه دوی ته لپاره د دې چې جزا ورکړي دوی ته الله د هغو ډېرو ښو نېکو کارونو چې وو دوی چې کول به يې (په لاره د الله کې).

تفسير: يعني د ډېر ښه عمل به ډېره ښه جزا ورکوي:

ښکاره دی د غازیانو لوی عزت «««»»» په ژوندون د دې دنیا او آخرت

کله چې پر متخلفینو د جهاد دغسې عتابونه راغلل؛ نو مؤمنانو پخپلو منځونو کې سره وویل چې: که پس له دې نه بیا غزا پېښه شوه؛ نو ټول به ځو له ځرمې (سېلمې) غزا ته؛ نو په دغه مناسبت دغه آیت نازل شو:

وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنفِرُوا كَافَّةً ۚ فَلَوْلَا نَفَرَ مِن كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَائِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾

او نه دي مؤمنان داسې چې ووځي ټول له ځرمې (سېلمې) (غزا یا د علم طلب ته)، نو ولې نه ځي له هرې ډلې له دې مؤمنانو نه یو ټولی لپاره د دې چې پوهه پیدا کړي دغه (تلونکي) په دین کې، او لپاره د دې چې خبر ورسوي قوم خپل ته کله چې بېرته راشي دوی په لوري د هغوی؛ لپاره د دې چې هغوی وویرېږي.

تفسیر: په تېرو رکوعاتو کې «جهاد» ته د تللو فضیلت او «جهاد» ته د نه تللو د ملامتی ذکر وو، ممکن وو چې چا داسې ګڼلي وي چې: تل په هر جهاد کې د ټولو مسلمانانو وتـل فـرض عین دي، په دغه آیت کې یې وفرمایل چې: تل دغسې عمومي وتلو ته څه ضرورت نشته، او نه مصلحت دی چې ټول مسلمانان سره یو دم د جهاد لپاره ودرېږي او ور وځي، بلکه دا مناسب دي چې له هرې قبیلې او هر قوم څخه یوه ډله «جهاد» ته ووځي، او نور ټول دې پخپلو کارونو او ضروریاتو کې مشغول او لګیا اوسي.

اوس که نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خپل نفیس نفس «جهاد» ته تشریف یوسي، نو له هر قومه څخه هغه جماعت چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره ځي؛ دوی به د نبيّ الله په صحبت کې په سلهاوو حوادثو او واقعاتو عبور کوي، او د دیني احکامو پوهه او علم به حاصل کړي، او د بېرته راتګ په وخت کې به خپلو پاتې شویو اقوامو ته د خپل زیات علم او تجربې په بناء له نېکۍ او بدۍ څخه خبر ورکوي.

شاه صاحب لیکي: «ښایي چې له هر قومه څخه څه خلق او سړي د پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحبت کې واوسي چې دیني علم زده کړي، او نورو پاتې شویو ته یې هم وروښیي، اوس رسول الله مبارک په دغې دنیا کې نه دی موجود، لیکن دیني علوم او علماء موجود دي، او د علم طلب فرض کفایي دی، او جهاد هم فرض کفایي دی، هو ! که په کوم وقت کې د امام له لوري نفیر عام وشي، نو فرض عین ګرځي، په «تبوک» کې هم دغه صورت وو، نو ځکه د هغو کسانو څخه چې بېرته پاتې شوي وو؛ پوښتنه وشوه، والله أعلم».

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قَاتِلُوا الَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ ﴿١٢٣﴾

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی ! جنګ کوئ تاسې له هغو خلقو سره چې نژدې دي تاسو ته له کفّارو، او ودې مومي دوی په تاسې کې کلکوالی، او پوه شئ (ای مؤمنانو !) چې بېشکه الله پرهېزګارانو سره دی (په حفاظت او اعانت سره).

تفسیر: جهاد فرض کفایي دی، چې له طبیعي ترتیبه سره موافق ړومبنی له هغو کفارو سره وکړ شي چې مسلمانانو ته ډېر نژدې وي، بیا له هغو سره چې دوی ته نژدې وي، همداسې درجه په درجه ښایي چې د جهاد حلقه او دائره

وسيعه او ارته شي، د نبي کريم صلی الله عليه وسلم او د راشدو خلفاوو رضي الله تعالی عنهم جهاد هم په دغه ترتيب سره شوی دی، په دفاعي جهاد کې هم د فقهې عالمانو همدغه ترتيب غوره کړی دی، چې پر هغه اسلامي ملک باندې چې کفارو چپاو (حمله) وروړي، د هغه ملک په مسلمانانو واجب دي، چې د هغو دفاع وکړي، که هغوی کافي نه وي، يا لټي (ناراستي) يا سستي کوي، نو په هغو مسلمانانو جهاد واجبيږي، چې دوی ته متصل پراته وي، همداسې که ضرورت واقع شي؛ نو درجه په درجه له مشرقه نيولې تر مغرب پورې جهاد پرله پسې فرضيږي.

﴿وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً﴾: د مؤمن شان دا دی چې د خپل اسلامي ورور په مقابل کې نرم بردبار وي، او د الله تعالی او د رسول الله د دښمنانو په معاملې کې ډېر کلک، تند، ځيږ او شديد وي، تر څو د هغه د نرمی او سستی لـه ليدلو څخه دښمنان پرې زړور او جريء نشي: ﴿أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ﴾ (۶ جزء د المائدې سورت (۵۴) آيت (۸) رکوع)، ﴿وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ﴾ (۲۶ جزء د الفتح سورت (۲۹) آيت (۴) رکوع)، ﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ﴾ (۲۸ جزء د التحريم سورت (۹) آيت (۱) رکوع)، (۱۰ جزء، سورة التوبة (۷۳) آيت، (۱۰) رکوع.

﴿وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ﴾ الآيه - يعنې د الله تعالی ځنې ويريدونکو کسانو ته نه ښايي چې له هيڅ کوم يوه کافر قوم څخه وويريږي، يا د هغو په مقابل کې ځان ښکته وګڼي، او هر څومره چې مسلمانان د الله تعالی څخه وويريږي؛ تر هغه وخته پورې او په همغې اندازې دوی په کفارو باندې برى او غلبه مومي، ای پاک الله ! ته څمونږ زړونه له خپلې وېرې او مينې څخه ډک کړې !.

وَإِذَا مَا أُنْزِلَتْ سُورَةٌ فَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِ إِيمَانًا ۚ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَزَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿١٢٤﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿١٢٥﴾

او کله چې نازل کړی شي کوم سورت؛ نو ځينې له دغو منافقانو هغه دي چې وايي: کوم يو دی له تاسو چې زيات کړ هغه ته دې سورت ايمان؟؛ نو هر چې هغه کسان دي، چې ايمان لرونکي دي؛ نو زيات کړ (دغه سورت) دوی ته ايمان حال دا چې دوی خوشاليږي. او هر چې هغه کسان دي، چې په زړونو د دوی کې مرض (د نفاق، شک او کفر) دی؛ نو زياتوي (دا سورت) دوی ته ګندګي پر ګندګی د دوی (چې کفر او شک دی)، او مري دوی په دې حال کې چې دوی کافران دي.

تفسير: هر کله چې کوم قرآني سورت نازلېده؛ نو منافقينو به په خپلو منځونو کې يو له بله سره، يا له ځينو ساده او ضعيف الاعتقادو مسلمانانو سره د استهزاء او تمسخر له لوري ويل: «څرنګه صاحبه ! په تاسې کې د کوم کوم سړي ايمان دغه سورت در زيات کړ؟» مطلب به يې داسې وو چې ـ معاذ الله ـ په دغه سورت کې څه شی اينبی دی؟ او کوم حقائق او معارف په کې شته چې د ايمان او ترقي موجب وګڼل شي؟.

پاک الله د دوی د دغې وينا داسې جواب وفرمايه: بېشکه چې د مؤمنانو ايمان ته د الله تعالی د کلام له آورېدلو څخه ترقي، تازه ګي، او تزييد ور په برخه کيږي، او د هغو زړونه مسرور او منشرح کيږي، هو ! د هغو کسانو په زړونو کې چې د کفر او نفاق رنځوري او ګندګي وي؛ نو د دوی په رنځورۍ او ګندګۍ کې تزييد کيږي، تر دې حده پورې چې دغه رنځوري به د دوی ساه وباسي، بيا به يې پريږدي.

أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ وَلَا هُمْ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٢٦﴾

آيا فکر نه کوي او نه ګوري دوی؟ چې بېشکه مبتلا کولی شي (په ډول ډول مصائبو) په هر يوه کال کې يو کرت يا دوه کرته، بيا له سره هغوی نه توبه کوي، او نه پند اخلي.

تفسير: يعنې لږ تر لږه په هر کال کې يو ځلې يا دوه ځلې دغه منافقين په فتنه او آزموينه کې غورځول کيږي، مثلا قحط، رنځوري او په نورو ارضي يا سماوي آفتونو کې مبتلا کيږي، يا د پاک رسول الله په مبارکه ژبه د دوی نفاق علانيه او ښکاره ځرګندېږي، يا د جنګ او جهاد په وخت کې د دوی وېره، بې زړه توب، نفاق او د زړه ځېره ښکاره کيږي، مګر دوی داسې بې حيا او بد باطن واقع شوي دي؛ چې له سره يې ستر ګې نه شرميږي، او سره له تنبيهاتو بيا هم په سمه لاره نه راځي، او نه له خپلو خطاوو څخه توبه وباسي، او نه وروسته له دې نه پند او نصيحت قبلوي.

وَإِذَا مَا أُنزِلَتْ سُورَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ هَلْ يَرَاكُم مِّنْ أَحَدٍ ثُمَّ انصَرَفُوا ۚ صَرَفَ اللَّهُ قُلُوبَهُم بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿١٢٧﴾

او کله چې نازل کړی شي کوم سورت؛ نو وګوري ځينې د دوی ځينو نورو ته: (حال دا چې وائي:)، آيا ويني تاسې کوم يو (د مسلمانانو، که چا دوی ونه ليدل نو پاځېدل به) بيا به لاړل (له مجلسه)، ګرځولي دي الله زړونه د دوی په سبب د دې چې دوی هسې قوم دی چې نه پوهيږي (په ګټه او تاوان خپل).

تفسير: يعنې د نبي صلی الله عليه وسلم له مجلس څخه ګرځي، الله تعالی د دوی زړونه ګرځولي دي، چې دوی له خپله جهله او حماقته د ايمان د خبرو پوهېدل او قبلول نه غواړي.

لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١٢٨﴾

خامخا په تحقيق راغلی دی تاسې ته يو رسول له جنسه ستاسې، چې ډېر سخت دروند دی پر ده باندې هغه کار چې تاسې تکليف مومئ (له هغه)، ډېر حرصناک دی په (هدايت) ستاسې، خاص پر مؤمنينو باندې نهايت شفيق ډېر مهربان دی.

تفسير: يعنې له هر هغه شي څخه چې تاسې ته تکليف يا سختي رسيږي؛ هغه پر ده باندې ډېر سخت او دروند دی، په هرې ممکنې طريقې سره رسول الله صلی الله عليه وسلم هم دا غواړي، چې د ده پر امت باندې آساني وي، او دنيوی او اخروي عذاب څخه محفوظ پاتې وي، نو ځکه هغه دين چې دوی له خپله ځانه سره راوړی دی؛ هغه سهل، آسان، بې تکليفه او پوست دی، او خپلو کاردارانو ته هم دغه نصيحت کوي چې: «يسروا ولا تعسروا» «آساني کوئ ! سختي مه کوئ پر خلقو !».

﴿حَرِيصٌ عَلَيْكُم﴾ الآيه - يعنې ستاسې د خير غوښتلو او نفع رسولو خاص اشتياق او بېقراري د ده په زړه کې شته، هغه خلق چې د دوزخ په لورې منډې وهي؛ هغوی له ملاوو څخه پرله پسې نيسي، او د هغه څخه يې ستنوي (منع کوي)، د ده لوی کوښښ او آرزو دا ده چې د الله تعالی بندګان اصلي ښېګڼو (نېکيو) ته ورسيږي، او حقيقي برې ومومي، د جهاد او د نورو مقصد همدا يواځې وينې تويول نه دي، بلکه دمجبوريت په وخت کې دجهاد لاره نيول کيږی، کله چې کفار پخپله هم اسلامی دعوت نه منی او د دعوت په مخکی هم خنډ کيږی، نو دجهاد نوبت رسيږی.

﴿فَإِن تَوَلَّوْاْ فَقُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ١٢٩﴾

نو که وګرځېدل دا (خلق له ايمان راوړلو په تا باندې) نو ووايه: کافي دی ماته الله، نشته هيڅ لايق د عبادت مګر همدی دی، پر همده توکل کړی دی ما، حال دا چې رب د عرش لوی دی.

**تفسير:** يعنې که ستاسې د دې عظيم الشأن شفقت او خير غوښتلو او زړه سوی قدر خلق ونه کړي، نو هيڅ پروا نشته، فرض يې کړئ، که ټول جهان له تاسې څخه مخ وګرځوي، نو يواځې پاک الله تاته بس او کافي دی، چې ما سوا له هغه بل هيڅوک نه د عبادت او بندګۍ وړ او لايق، او نه د توکل او اعتماد مستحق کېدی شي، ځکه چې د ځمکې او آسمان سلطنت او د عرش عظيم (شهنشاهي تخت) مالک هم دی دی، او ګردې نفعې او اضرار، هدايت او ضلالت د همده په لاس کې دي.

**فائده:** په ابو داود شريف کې له ابو الدرداء رضي الله تعالى عنه څخه روايت دی: «هر هغه سړی چې صبا او بېګاه اوه اوه ځلې ﴿حَسْبِيَ اللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ﴾ ولولي؛ الله تعالى به د ده د ټولو هومو او غومو لپاره کافي شي»، باقي د عرش د عظمت په متعلق که مو د تفصيلاتو د لوستلو شوق وي؟ نو د همدې آيت په ذيل او لمن کې دې د «روح المعاني» مضامين ولوستل شي.

تمّت سورة التوبة بفضل الله تعالى وحسن توفيقه ـ اللهم تُب علينا واجعل لنا براءة من النار، إنك أنت التواب الرحيم.



# سُوْرَةُ يُوْنُسَ

«د (یونس) سورت مکي دی، یو سل او نهه آیتونه او یوولس رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰) او په نزول کې (۵۱) سورت دی، د (بني اسرائیل) له سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ①

دغه آیتونه دي د کتاب (قرآن) ډک له حکمته.

تفسیر: دغه آیتونه د داسې مضمون اومحکم کتاب دي؛ چې د هغه هره خبره پخه او مضبوطه ده، الفاظ یې د دې لامله محکم او مضبوط دي، چې تل له تبدیلی اوتحریفه محفوظ دي، علوم یې له دې جهته مضبوط او پاخه دي، چې ډېر زیات سم له عقله او حکمته سره دي، احکام یې له دې سببه ښه او جید دي، چې وروسته له دې بل کوم ناسخ کتاب راتلونکی نه دی، اخبار او قصص یې هم بیخي ښه او دُرست او د واقع سره موافق دي، کله چې علیم او حکیم الله دغه پاک کتاب د خپل کامل علم سره را نازل کړی دی؛ نو ولې به هم داسې نه وي !.

اَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا اَنْ اَوْحَيْنَآ اِلٰى رَجُلٍ مِّنْهُمْ اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ
عِنْدَ رَبِّهِمْ ؔ قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ②

آیا دی خلقو ته تعجب (له دې خبرې) چې وحي وکړه مونږ یو سړي ته له دوی نه؛ چې وویروه خلق (نه منونکي) او زېری ورکړه هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی، چې بېشکه شته دوی ته مرتبه لویه رښتینې په نزد د رب د دوی، نو وایي دا کافران چې: بېشکه دغه (محمد) خامخا کوډګر دی ښکاره.

تفسیر: یعني په دغه کې د حیرانتیا او تعجب څه خبره ده؟ چې پاک الله د انسانانو د اصلاح او هدایت لپاره همغسې یو انسان مأمور کړی دی، او هغه ته یې خپل داسې پیغام ورلېږلی وي، چې پر هغه نور کسان بلا واسطې خبر نشي، او دغه رسول الله صلی الله علیه وسلم ټول مخلوق د خالق د نافرمانی له مهلکو نتائجو او عواقبو څخه خبروي، او د الله تعالی د احکامو منونکو ته زېری او بشارت ورکړي؛ چې د رب العزت په دربار کې د صالحو نېکو اعمالو په برکت، او په ایمان او طاعت، د پیغمبر شفاعت او نورو ډېرو لویو مرتبو او ډېرو هسکو درجو ته رسیږي، او ډېر اعلی سعادت او اقصی کرامت او ازلي فلاح او ابدي صلاح د دوی په برخه کې لیکلې شوې ده.

﴿قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ﴾ الآیه - یعني قرآني وحیې ته د ده د فوق العاده مؤثریت او بې نهایته بلاغت له سببه کوډې (جادو) او د هغه راوړونکي ته ساحر (کوډګر) وایي.

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ يُدَبِّرُ الْاَمْرَ ؕ مَا مِنْ
شَفِيْعٍ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ اِذْنِهٖ ؕ ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ③

بېشکه چې رب ستاسې الله دی هغه چې پيدا کړي يې دي آسمانونه او ځمکه په شپږو ورځو کې، بيا اوچت شو په عرش باندې، تدبير کوي د ټولو کارونو، نشته هيڅ شفيع (چې شفاعت وکړي شي په ورځ د قيامت کې) مګر وروسته د اذنه د الله، دغه الله (چې موصوف دی په دې صفاتو) رب ستاسې دی؛ نو عبادت کوئ تاسې د ده، آيا (فکر نه چلوئ) نو پند نه اخلئ؟

تفسير: ﴿فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ﴾: د دې آيت معنی اوتفسير د «الأعراف» په سورت (۵۴) آيت کې په تفصيل سره تېر شوي دي، د هغې څخه دې استفاده وشي !.

﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ﴾: د «الأعراف» د سورت په (۷) (۵۴) آيت، رکوع کې هم داسې يو آيت تېر شوی دی، دلته دې هم د هغو فوائدو څخه فائده واخيستله شي.

﴿يُدَبِّرُ الْأَمْرَ﴾: يعنې د ټولو مخلوقاتو تدبير او انتظام د الله تعالى په بالغه حکمت او قاهره قوت کې دی.

﴿مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِن بَعْدِ إِذْنِهِ﴾ يعنې شريک او حصه دار د ده په الوهيت کې څوک چېرې کېدی شي، همدغه تش سپارش هم د ده په لوی دربار کې بې د ده د حکم او اجازې څخه امکان نه لري، او هيڅوک پرته د الله تعالى د ارادې څخه د سپارښت لپاره هم شونډې نشي خوځولی.

﴿ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ﴾: يعنې ښه فکر وکړئ، چې د داسې رب څخه ما سوا چې صفات يې مخکې بيان شول؛ بل څوک شته چې د هغه د بندګۍ او عبادت وړ (لايق) وي؟ بيا نو تاسې څرنګه جرأت او ځغردي (ضد) کولی شئ، چې د هغه خالق، مالک، مطلق شهنشاه او بر حق حکيم له احکامو او د ده د رسول له احکامو څخه محض د وهمونو او ګمانونو په اثر انکار، او هغه ټول سره دروغجن کوئ؟ !.

إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ إِنَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ بِالْقِسْطِ ۚ وَالَّذِينَ كَفَرُوا لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ④

خاص هم ده ته ورتله ستاسې دي د ټولو، وعده کړې ده الله وعده حقه، بېشکه دی اول پيدا کوي دا مخلوق، بيا يې ژوندی کوي (پس له مرګه) لپاره د دې چې جزاء ورکړي هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه عملونه په عدل، انصاف سره، او هغه کسان چې کافران شوي دي؛ شته دوی ته څښل له ايشېدلو اوبو او عذاب دی دردناک، په سبب د دې چې وو دوی چې کفر به يې کولو.

تفسير: يعنې له همده څخه ستاسې ابتداء او د همده په لوري ستاسې انتهاء ده، او په آخر کې ټول د ده په لوري ورتلونکي يئ، بيا د ده او د ده د رسولانو د احکامو څخه څرنګه غاړه غړوئ.

هُوَ الَّذِي جَعَلَ الشَّمْسَ ضِيَاءً وَالْقَمَرَ نُورًا وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ مَا خَلَقَ اللَّهُ ذَٰلِكَ إِلَّا بِالْحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ⑤

الله هغه ذات دی چې ګرځولی يې دی لمر روڼ (ځلېدونکی) او سپوږمۍ روښانه، او مقدّر (مقرر) کړي يې دي هر يوه ته منزلونه، لپاره د دې چې پوه شئ تاسې په شمېر د کلونو او په حساب (د مياشتو او ورځو)، نه دي پيدا کړي الله دا څيزونه مګر په حقه سره، په تفصيل سره بيانوي دلائل لپاره د هغه قوم چې پوهيږي.

تفسير: «نور» له «ضياء» څخه عام دى، «ضياء» خاص هغه «نور» ته وايي، چې زيات روڼ او ځلېدونكى وي، ځينې وايي: هغه چې رڼا يې ذاتي وي «ضياء» ده، او هغه چې له بل شي مستفاد او مستنار او رڼا كيږي؛ هغه «نور» دى، د لمر رڼا په دغه عالم الأسباب كې د بلې كرې ځنې نه حاصليږي، د سپوږمۍ رڼا البته د لمر له رڼا څخه مستفاده ده، او ځينو محققانو په دواړو كې دغه فرق راښوولى دى، چې «نور» مطلق رڼا ته وايي، «ضياء» او «ضوء» د هغې د انتشار (خورېدلو) نوم دى، د لمر د رڼا انتشار څرنګه چې زيات دى، نو ځكه هغه يې په «ضياء» سره تعبير وفرمايه، و الله أعلم بمراده.

﴿وَقَدَّرَهُ مَنَازِلَ﴾ : يعنې هره ورځ يې په تدريج سره تنقيص او تزييد كوي، ﴿وَالْقَمَرَ قَدَّرْنَاهُ مَنَازِلَ حَتَّىٰ عَادَ كَالْعُرْجُونِ الْقَدِيمِ﴾ (٢٣ جزء د يس شريف سورت (٣٩) آيت (٣) ركوع).

د هيئت علماوو د سپوږمۍ دورې شمېرلې دي، او اته ويشت منازل يې ورته مقرر كړي دي؛ چې پر دوولسو برجو منقسم دى، په قرانكريم كې خاص د هغو مصطلحاتو مراد نه دي، بلكه مطلق سير، او د مسافت مدارج ترې مراد وي.

﴿لِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ﴾ يعنې د كلونو حساب او د مياشتو وړوكى او لوى شمېر ټول د لمر او سپوږمۍ په حركاتو پورې تړلي دي، كه لمر او سپوږمۍ نه وي، نو شپه او ورځ، قمري او شمسي مياشتې، كال او نور به څرنګه متعين كېدل؟ حال دا چې برسېره پر دنيوي ژوندون او د معاشي چارو، د ډېرو شرعيه وو احكامو د اوقاتو ټاكل (مقررول) او تعيين هم په همدغه لمر او سپوږمۍ سره كيږي.

﴿مَا خَلَقَ اللَّهُ ذَٰلِكَ إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ يعنې د فلكياتو سلسله هم داسې خوشې چټي (بېكاره) شى او كيفما اتفق نه ده، بلكه له ډېر عظيم الشأن نظام او تدبير لاندې چليږي، او په زرهاوو فوائدو او حكمتونو باندې مشتمله ده.

﴿يُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ﴾ : يعنې پوه خلق او عقلاء د دغه نظام له كتلو څخه د پاك قادر حكيم الله سُراغ او پته لګوي، او د مادياتو له انتظامه د روحانياتو د عالم په متعلق هم اندازه لګوي، چې په هغې روحاني دنيا كې څرنګه لمر او سپوږمۍ پاک الله پيدا كړي دي، او همدغو ته انبياء او مرسلين وايي.

إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَّقُونَ ۝

بېشكه په اختلاف د شپې او ورځې كې (چې تـل اوږديـږي او لنډيږي، او يوه په بلې پسې راځي يخ او ګرميږي)، او په هغو شيزونو كې چې پيدا كړي دي الله په آسمانونو كې او ځمكه كې؛ خامخا دلائل دي (د قدرت) لپاره د قوم چې ويريږي (له رحمان او ځان ساتي له عصيانه).

إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا وَالَّذِينَ هُمْ عَنْ آيَاتِنَا غَافِلُونَ ۝ أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝

بېشكه هغه كسان چې نه لري اميـد د ملاقات ځمونږ او خـوښ دي په دې ژوند لږ خسيس او آرام يې نيولى په دى (ژوند پورې) او هغه كسان چې دوى له آيتونو ځمونږ نه غافلان دي. دغه مذكوره كسان ځاى د ورتلو د دوى اور (د دوزخ) دى په سبب د هغه چې وو دوي چې كول به يې.

تفسير: يعنې له دنيا سره يې داسې زړه ونښلاوه او هسې په كې مشغول او لګيا شول چې له آخرته او د الله تعالى د مخامخ كېدلو او ليدلو څخه بيخي بې پروا شول، او هم دغه د څو ورځو ژوندون يې د ځان مقصود او معبود وګرځاوه، او د قدرت په هغو نښو او دلائلو يې چې پاس ياد شول؛ له سره هيڅ غور او تأمل ونه كړ، چې داسې مضبوط او حكيمانه نظام خو همداسې بېكاره او چټي (فضول) نه دى جوړ كړى شوى، او ضرور د دې لويې كارخانې څخه كوم خاص

مقصد او مدّعا شته، بيا نو هغه ذات چې اول ځلې يې داسې عجيبه او غريبه كارخانه او مخلوقات پيدا كړې دي، هغه ته د هغه بيا پيدا كول هيڅ ګران او مشكل نه دي.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ يَهْدِيهِمْ رَبُّهُمْ بِإِيمَانِهِمْ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٩﴾

بېشكه هغه كسان چې ايمان يې راوړى او كړي يې دي ښه (عملونه) وبه ښيي دوى ته رب د دوى لاره د جنت په سبب د ايمان د دوى، چې بهيږي له لاندې (د كورونو او باغونو) د دوى (څلور قسمه) ويالې په باغونو د آرامۍ (ډك له نعمتونو).

دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٠﴾

دعاوې (ويناوې) د دوى به په دې جنتونو كې (دا وي) چې پاكي ده تا لره اى الله، او پېشكشي د دوى به په دغه (جنت) كې سلام وي، او خاتمه د دعا (وينا) د دوى به دا وي چې ټولې ثناوې ستاينې (د كمال صفتونـه) خاص الله لره دي، چې رب (پالونكى) د ټولو عالميانو دى.

تفسير: يعني كله چې جنتيان د جنت نعمتونو او د الله تعالى فضل او احسان ته ګوري «سبحان الله» به وايي، او كله چې د پاك الله څخه د كوم شي د غوښتلو مينه او آرزو كوي، مثلاً كه كوم مرغه (طير) يا مېوه يا بل شى يې وليد، او ورته يې رغبت پيدا شو؛ نو ﴿سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ﴾ به وايي، د دې الفاظو د اورېدلو سره متصل پرښتې به هم همغه شى على الفور ورحاضر كړي، ګواكې همدغه لفظ به د دعاوو قائم مقام شي.

﴿دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ﴾ يعني جنتيان به د ملاقات په وقت كې يو بل ته سلامونه اچوي، لكه چې په دنيا كې هم د مسلمانانو دغه عادت او دستور دى، او هم د پرښتو سلام اچول جنتيانو ته بلكه بالذات د الله تعالى له لوري د سلام تُحفې راتلل په پاك قرآن كې منصوص دي: ﴿سَلَامٌ قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَحِيمٍ﴾ (۲۳ جزء د ﴿يٰسٓ﴾ سورت (۵۸) آيت (۴) ركوع)، ﴿وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِمْ مِنْ كُلِّ بَابٍ ۝ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾ (۱۳ جزء د الرعد سورت (۲۲-۲۳) آيت (۳) ركوع).

﴿وَآخِرُ دَعْوَاهُمْ أَنِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾: وروسته د جنت له رسېدلو څخه دنيوي تفكّرات او كدورات خاتمه مومي، او تش په يوه ﴿سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ﴾ ويلو سره هر شى سم د جنتيانو له غوښتنې سره ورسيږي، نو د دوى د هرې دعا او وينا خاتمه به په ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ﴾ سره وي، او ښايي چې طبعا دې همداسې وي.

وَلَوْ يُعَجِّلُ اللَّهُ لِلنَّاسِ الشَّرَّ اسْتِعْجَالَهُمْ بِالْخَيْرِ لَقُضِيَ إِلَيْهِمْ أَجَلُهُمْ فَنَذَرُ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١١﴾

او كه جلتي سره ورسوي الله خلقو ته بدي په شان د جلتۍ د غوښتنې د دوى نيكي او خير لره؛ نو خامخا راليږلې شوي به وو دوى ته اجل (موت) د دوى، نو پرېږدو مونږ هغه كسان چې نه لري اميد دوى د ملاقات څمونږ (په قيامت كې) په سركشۍ ددوى كې چې سرګردانه به وي.

تفسير: كله انسان د دنيوي حوادثو څخه په تنګيږي، او د خپل ځان يا اولاد او نورو په حق كې ښېرې كوي، لكه چې له تجربې څخه ظاهر دي، نو اوس كه الله سم د دوى له غوښتنې سره فوراً لاس په لاس عذاب يا بدي ژر هغو ته ورورسوي، څومره چې دوى ژر د نيكۍ د رسېدلو غوښتنه كوي، نو د بدۍ له وبال څخه يوه لحظه هم فرصت نه مومي، او د ژوندون مزى به يې هغه ګړى وشكيږي، مګر د الله تعالى له درباره په نېكۍ او بدۍ كې مصلحت سره موافق

تأخير او تحمّل کيږي، ښو نېکان تربيت وومومي، او بد کاران په غفلت کې ولوېږي، او د هغو د شرارت جام تر څنډو (غاړو) پورې ډک شي.

وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ كَأَن لَّمْ يَدْعُنَا إِلَىٰ ضُرٍّ مَّسَّهُ كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۲﴾

او کله چې ورسيږي انسان ته ضرر (تکليف)؛ نو بولي مونږ (پروت) په اړخ يا ناست يا ولاړ (يعنې په هر حال)، نو کله چې لرې کړو له ده څخه ضرر تکليف د ده؛ نو درومي په کفر خپل باندې لکه چې نه يي وو بللي مونږ (دفع کولو د) هغه ضرر ته چې رسېدلی وو ده ته، همداسې ښايسته کړی شوی دی دغو اسراف کوونکو ته هغه (عصيان) چې وو دوی چې کاوه به يې.

تفسير: يعنې انسان اول د خپلې بېباکۍ څخه د عذابونو غوښتنه کوي، او پخپلې ژبې بدي غواړي، مګر دومره کمزور او ناتوانه هم دی، چې که لږ څه تکليف ور ورسيږي؛ نو ژر تر ژره ويرېږي، او ځمونږ په بللو سره پيل (شروع) کوي، او تر هغه وقته پورې چې پرې مصيبت وي، په ولاړه، ناسته، ملاسته او په هر حالت کې پاک الله يادوي او ترې استمداد غواړي، مګر کله چې تکليف ترې لرې کړ شي؛ نو ترې هغه ټولې ويناوې عذر او زارۍ هېرېږي، او داسې يو وضعيت ښکاره کوي چې ګواکې ده له سره الله تعالی ته خپل احتياج او اړتيا نه وه وروړاندې کړې، او پخپل همغه تکبر، غرور، لوبۍ، غفلت او د ځانمنۍ (خودنمايۍ) په نشو کې مست ګرځي، او په همغه ضد او عناد لګيا اوسيږي چې پخوا له دې نه په کې اخته او مبتلا وو.

په حديث کې راغلي دي چې «ته په عيش او عشرت، هوسايۍ او آرامۍ کې خپل الله يادوه ! نو الله تعالی به هم تا په سختيو، مصيبتونو او تکليفونو کې يادوي»، د مؤمن له شانه دا دی؛ چې په هيڅ وقت کې پاک الله نه هېروي، تل په سختۍ او مصيبت کې صابر او په وقت د عيش او پراخۍ او وسعت کې شاکر اوسيږي، او د الله جلّ وعلا حمد او ثناء ادا کوي، دا همغه شی دی چې د هغه توفيق پر ته (علاوه) له مؤمنه د بل چا په برخه نه کيږي.

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِن قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوا وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ﴿۱۳﴾

او خامخا په تحقيق هلاک کړي وو مونږ اهل د زمانو چې وو پخوا له تاسو کله چې ظلم يې کړی وو، او حال دا چې راوړي وو هغو ته رسولانو د هغو ښکاره دلائل، او له سره نه وو چې ايمان يې راوړی وی، همداسې سزا ورکوو مونږ قوم مجرمانو ته.

تفسير: يعنې که سم د هغو د غوښتنې سره ژر عذاب ورنشي يا خو ترې تکليف او مصيت لرې شي؛ نو ښايي چې بې فکره نشي، ځکه د ظلم او شرارت او بې ايمانی سزا هرومرو ژر يا په ځنډ وررسېدونکې ده، سنت الله له قديمه راهيسې په همدې باندې جاري دی، کله چې خلقو سره له دې چې د انبياوو او مرسلينو ښکاره دلائل او معجزې يې وکتلې، خو وروسته له هغه يې هم ظلم او تکذيب ته ملاوې وتړلې، او په هيڅ ډول د ايمان او تسليم په لوري متمائل نشول، نو هغوی آسماني عذاب هلاک کړي دي، او تل مجرمينو ته په يوه قسم نه په بل قسم سزا رسېدلې شي.

ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ مِن بَعْدِهِمْ لِنَنظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴿۱۴﴾

بيا مونږ ورګرځولئ تاسې (ای محمدي امته !) خليفګان په ځمکه کې وروسته له هغو څخه لپاره د دې چې وګورو مونږ چې څرنګه عمل کوئ تاسې.

**تفسیر:** یعني د پښتانیو په ځای تاسو ته یې د ځمکې په سر هستوګنه درکړه، تر څو وکتل شي چې تاسې تر کومه حده پورې د خالق او د مخلوق حقوق پېژنئ، او ادا کوئ یې؟ او د الله تعالی له رسولانو سره څرنګه معامله کوئ؟ نېک که بد؟ هر ډول عمل چې وکړئ سم له هغه سره تاسې سره مناسبه معامله کولی کېږي، وروسته له دې نه د هغې معاملې ذکر دی، چې کفارو او منکرانو له پاک قرآن عظیم یا له رسول کریم یا الله قدّوس سره کړې وه.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ ۙ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ ۚ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي ۖ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ ۖ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥﴾

او کله چې ولوستل شي پر دغو (کفارو) آیتونه زموږ حال دا چې واضح دي؛ نو وایي هغه کسان چې نه لري امید د ملاقات زموږ، چې راوړه یو قرآن چې غیر وي له دې قرآن نه، یا یې بدل کړه (چې د بُتانو عیبونه او دغه احکام په کې نه وي) ووایه (ای محمده دوی ته) ! چې نه ښاییږي ماته دا چې بدل کړم دغه (قرآن) له ځانه خپله، متابعت نه کوم زه مګر د هغه وحی چې رالېږلی شوی دی ماته (بې له زیادت او نقصان)، بېشکه زه ویرېږم که نافرماني وکړم د رب خپل (په تبدیل د قرآن سره) له عذاب د ورځې لویې.

**تفسیر:** کله چې د بت پرستۍ یا د کفارو د مخصوصو عقائدو او نورو تردید کولی شي؛ نو کفّار متوحش او ترهور کیږي، او په ډېر نفرت او کراهیت سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وایي چې: پاک الله ته ووایه چې: «بل کوم هسې قرآن درکړي چې په کې دغسې مضامین نه وي، او که همدغه قرآن پاتې کیږي؛ نو دومره برخه یې ښایي چې هرومرو اصلاح او ترمیم کړئ، چې بت پرستي او نورو په متعلق په کې خبرې شته».

د هغو خلقو له ذهنیت څخه دغه غوښتنې دومره زیاتې مستبعدې نه ښکاري، چې د تیږو (ګټو) او لوټو په بتانو باندې یې د أُلوهیت تصرّفات او اختیارات تقسیم کړي وو؛ چې یو رسول هم د داسې تصرّفاتو او اختیاراتو مالک فرض کړي، یا به دغه وینا تشه د الزام او استهزاء په ډول وي.

په هر حال د دې تحقیقي جواب دا دی چې پخپله یې پاک الله داسې فرمایي: د کومې پرښتې یا رسول کار دا نه دی، چې له خپل لوري د الله تعالی په کلام کې ترمیم وکړي، یا یې یو ټکی یا حرکت تبدیل یا لاندې باندې کړي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم وظیفه دا ده: هغه وحي چې الله تعالی له لوري راشي؛ هغه بې له تزییده او تنقیصه د ده د حکم سره موافق ورسوي، او تعمیل یې وکړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالی د وحي تابع دی، الله تعالی د رسول تابع نه دی چې څرنګه کلام تاسې غواړئ همغسې د الله تعالی له درباره یې راوړي، د الله تعالی په وحیې کې له ادنی ځنې ادنی تصرّف قطع او پرېکول ډېر لوی معصیت او سخته ګناه ده، بیا هغه معصوم بنده ګان انبیاء علیهم السلام چې له ګردو څخه زیات له الله تعالی څخه ویریږي؛ هغوی داسې معصیت او نافرمانی ته کله نژدې ورتلی شي.

قُلْ لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا تَلَوْتُهُ عَلَيْكُمْ وَلَا أَدْرَاكُمْ بِهِ ۖ فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا مِنْ قَبْلِهِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٦﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) که د الله خوښه وی نو ما به نه وو لوستی دا (قرآن) پر تاسې او نه به خبر کړي وی (الله) تاسې په دې (قرآن)، نو په تحقیق اوسېدلی وم زه په تاسې کې ډېر عمر پخوا له (نزوله د) قرآنه، آیا نو عقل نه لرئ تاسې؟ !.

تفسیر: یعني هر هغه څه چې د الله غوښتنه ده؛ همغه زه ستاسې په مخ کې لولم، او هومره چې د ده خوښه وي؛ څما په وسیله تاسې پرې خبروي، که د ده اراده پرته (علاوه) له دې نـه وي؛ نو څما څه طاقت او توان وو، چې له خپله ځانه کوم کلام او خبره جوړه کړم، او بیا هغه د ده په لوري منسوب کړم، آخر څما څلوېښت کاله عمر ستاسې تر سترګو لاندې تېر شوی دی، او په دغومره اوږد مدّت کې تاسې ته څما د ټولو حالاتو په متعلق هر قسم تجربې او معلومات حاصل شوي دي، څما صداقت، عفّت، امانت او نور حسنه اخلاق په تاسې کې ضرب المثل دي، څما امیتوب او د کوم معلم په مخ کې د شاګردۍ لپاره نه کېناستل؛ یوه معروفه او مسلّمه واقعه ده.

نو بیا چا چې تر څلوېښت کلنۍ پورې نه کومه قصیده لیکلې وي، او نه په مشاعراتو کې شریک شوی وي، او نه یې چېرې کوم کتاب پرانیستلی وي، او نه یې قلم په لاس کې اخیستی وي، او نه په کومې مدرسې، مکتب او نورو کې د لوستلو لپاره ناست وي، او یو ناڅاپه داسې یو کلام پېش، وړاندې کړي، چې پخپل فصاحت، بلاغت، جزالت، سلاست، روانۍ او د اسلوب په جدّت کې ټول پیریان او انسانان عاجز کړي، او د ده د علومو او معارفو او حقائقو په مقابل کې د ټول جهان علم او عرفان بېرته پاتې شي؛ نو آیا پس تاسې عقل نه لرئ؟ او نه پوهېږئ چې دغه قرآن ما له ځانه نه دی ساز کړی، او ولې به زه په الله تعالی دروغ تړم څکه چې:

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُونَ ﴿١٧﴾

نو څوک دی ډېر ظالم له هغه چا نه چې تړي پر الله باندې دروغ یا نسبت د دروغو کوي آیتونو د ده ته؟ (بلکه نشته)، بېشکه شان دا دی چې خلاصی نه مومي مجرمان.

تفسیر: یعني ګناهګارانو او مجرمانو ته حقیقي برى، فتحه او ښېګڼې نشي حاصلېدی، اوس تاسې خپله فیصله وکړئ! چې ظالم او مجرم څوک دی؟ که په فرض محال زه دروغ جوړ کړم، او هغه پاک الله ته یې منسوب کړم، نو ما غوندې بل هیڅوک ظالم نشي کېدی، لیکن له هغه دلیل څخه چې په تېر آیت کې تېر شوی دی؛ ثابته شوه چې دغه احتمال بالکل باطل دی، نو کله چې څما صداقت ثابت او ستاسې د جهل او د عناد لامله د الله تعالی کلام دروغجن کوئ؛ نو اوس د څمکې په مخ کې له تاسې څنې هیڅوک لوی ظالم نشي کېدی.

وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللَّهِ ۚ
قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ ۚ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿١٨﴾

او عبادت کوي دغه (کفار) غیر له الله د هغو بتانو چې نشي رسولی هیڅ ضرر دوی ته (که یې عبادت ونه کړي)، او نه نفع رسولی شي دوی (که یې عبادت وکړي)، او وایي دغه (کفّار) چې: دغه (بُتان) شفاعتګران څمونږ دي په نزد د الله کې، ووایه (ای محمده! دوی ته): آیا خبر ورکوئ تاسې الله ته په هغه څیز چې نه دی معلوم ده ته په آسمانونو او نه په څمکه کې (یعني داسې شی هیڅېرې نشته)، دغه الله پاک، او ډېر پورته دی له هغو اشیاوو چې شریکوي دوی (هغه له الله سره په عبادت کې).

تفسیر: هغه معامله خو له الله تعالی او د هغه له رسوله سره وه، اوس تاسې د هغو د بُت پرستۍ حال واورئ! چې پاک الله یې پرېښی او د داسې شیانو عبادت کوي، چې د هغو په قبضه او اختیار کې هیڅ یوه نفعه او ضرر نشته، کله چې پوښتنې کیږي؛ نو وایي: بېشکه چې لوی الله خو همغه یو او لا شریک ذات دی، چې آسمان او څمکه یې پیدا کړي دي، مګر د دغو اصنامو (بُتانو) او نورو معبوداتو انبیاؤ أولیاو پیر او فقیر خوشاله ساتل د دې لامله ضرور دي؛ چې دوی څمونږ شفاعت او سپارښت د پاک الله په لوی دربار کې کوي.

پاتې شوه نور وړوکي کارونه چې هغه د دوی په واک او اختیار کې دي؛ د هغو تعلّق یواځې له همدوی سره دی، بناء علیه مونږ لره ښايي چې د دوی عبادت وکړو.

نو په دې آیت کې دغې عقیدې باندې رد دی، او دا ورته په ډاګه کوي چې: د بُتانو شفاعت او د شفیع د عبادت کولو استحقاق؛ دغه دعاوی بې اصله او غلطې دي، او ښکاره ده چې د الله تعالی په علم کې همغه شی وي؛ چې صحیح او واقعي وي.

لهذا د الله تعالی د تعلیمه په خلاف دغو غیر واقعي او له ځانه جوړ کړي اصول حق ثابتول؛ ګواکې الله تعالی ته د داسې شیانو د واقعیت څخه (معاذ الله) خبر ورکول دي، چې د هغو په وقوع په آسمان او ځمکه او په هیڅ ځای کې ده ته معلوم نه دي، یعنې هیچېرې د هغه وجود نشته، که وی نو هرومرو به د هغه علم کې وي، بیا نو د هغه څخه مو الله تعالی ولې منع کوي؟.

وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَّاحِدَةً فَاخْتَلَفُوا ۚ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١٩﴾

او نه وو دغه خلق مګر امت یو (متفق په یو دین د اسلام) نو اختلاف وکړ دوی، او که نه وی هغه کلمه چې پخوا ثابته شوی ده له رب ستا؛ نو خامخا به حکم (فیصله) کړی شوی وو په منځ د دوی کې په همغه څیز کې چې په هغه کې اختلاف (جګړې) کوي دوی.

تفسیر: ممکن وو چې مشرکینو به ویل چې: که الله تعالی دغه امر ستاسې په دین کې منع کړی وي؛ ځمونږ په دین کې یې خو نه دی منع کړی، د هغه جواب یې ورکړ چې: د الله تعالی دین له ازله تر ابده پورې تل یو دی، په حقه و اعتقاداتو کې هیڅ فرق نشته، هغه خلق چې په منځ کې ګمراهان، بې لارې او سره جدا شوي دي؛ الله تعالی د دوی د پوهولو او پر حقه لاره راوستلو لپاره انبیاء لیږلي دي، په هیڅ یوه زمانه او په هیڅ یو ملت کې الله شرک نه دی جائز کړی.

پاتې شوه دغه خبره چې دخلقو یو له بل سره اختلافات او جګړې ولی یو ځلې نه ورکوي؟ نو ځکه: دا یې بالجبر نه دي لرې کړي؛چې د پاک الله په علم کې دغه خبره فیصله شوې ده، چې دغه دنیا «دار العمل» دی، د قطعي او آخري فیصلې ځای نه دی، دلته یې انسانانو ته کسب او اختیار ورکړی دی، او نور یې لږ څه آزاد او خپلواک پرې اېښې دي، چې دوی د عمل هره لاره چې غواړي؛ اختیار کړي، که دغه خبره لا له پخوا څخه طې او پرې کړی شوې نه وی؛ نو د ټولو اختلافاتو فیصله به یو ځلې کېده.

وَيَقُولُونَ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ ۖ فَقُلْ إِنَّمَا الْغَيْبُ لِلَّهِ فَانتَظِرُوٓا۟ إِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ﴿٢٠﴾

او وایي دوی: ولې نه ده نازله کړی شوې پر دغه (محمد باندې هغه) معجزه (چې مونږ یې غواړو) له ربه د ده، نو ووایه: بېشکه همدا خبره ده چې (علم د) غیب خاص الله ته دی؛ نو منتظر اوسئ تاسې (نزول د هغې معجزې ته)، بېشکه زه (هم) له تاسې سره له منتظرینو ځنې یم (ستاسو عذاب ته).

تفسیر: یعنې د هغو معجزاتو غوښتنه چې دوی یې کوي چې له هغو ځنې یو معجزه ولې نه رانازله شوې؟ د جواب حاصل دا دی چې: دوی د صداقت ډېر دلائل لا له پخوا څخه لیدلي دي، د فرمایشي معجزو ورښکارولو ته هیڅ ضرورت نه دی پاتې، او نه دومره مفید دي، وروسته د هر معجزې ښوونه چې د پاک الله مصلحت وي؛ ورښکاره

كوي يې،الله تعالى سره دغه علم شته چې په مستقبل كې به د كوم شان او نوعيت معجزې ظاهروي، نو تاسې هم منتظر اوسئ، مونږ به هم انتظار كوو.

وَإِذَآ أَذَقۡنَا ٱلنَّاسَ رَحۡمَةٗ مِّنۢ بَعۡدِ ضَرَّآءَ مَسَّتۡهُمۡ إِذَا لَهُم مَّكۡرٞ فِيٓ ءَايَاتِنَاۚ قُلِ ٱللَّهُ أَسۡرَعُ مَكۡرًاۚ إِنَّ رُسُلَنَا يَكۡتُبُونَ مَا تَمۡكُرُونَ ٢١

او كله چې ور وڅكوو مونږ خلقو ته كوم قسم رحمت (لكه صحت او غناء) وروسته له سختئ (لكه مرض او عناء) چې رسيدلې دې دوى ته؛ نو ناڅاپه وي به دوى لره مكر (بد ويل حيله جوړول) په آيتونو ځمونږ كې، ووايه (اى محمده !دوى ته چې) الله ډېر تيز دى له جهته د مكر، بېشكه رسولان (ملائكې ـ كرام الكاتبين) ځمونږ ليكي مكر ستاسې،

تفسير: حق تعالې په مكه والو اوه كاله قحط مسلّط كړ، كله چې هلاك ته ورنژدې شول؛ نو له ډېرې وېرې يې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم نه د دعا استدعاء وكړه، او وعده يې ورسره وكړه، كه دغه عذاب له مونږ څخه لرې شو، نو مونږ به هم ايمان راوړو، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دعا په بركت هغه عذاب محو او ورك او د قحط بلا بيخي لرې شوه؛ نو بيا دوى په همغو شرارتونو باندې پيل (شروع) وكړ، او د الله تعالى د آيتونو په تكذيب يې لاس پورې كړ، او د الله تعالى قدرت او رحمت ته يې نظر ونه كړ، بلكه د الله تعالى انعامات يې له ظاهري اسبابو او حيلو او محض بې اصولو خيالاتو او اوهامو په لوري نسبت كړل، نو د هغه جواب يې وركړ چې: ښه ده، ښه مكر او فرېب او حيله بازي وكړئ، مگر په ياد ولرئ چې ستاسې دغه حيله بازي يو په يو ليكله كيږي، او هغه ټول دفتر به د قيامت په ورځ ستاسې په مخ كې كېښود كيږي، بيا كله چې ستاسې هيڅ يوه حيله بازي له پرښتو څخه پټه نه ده، نو د الله تعالى د محيط علم څخه به څرنگه خارج پاتې كېدى شې؟ تاسې په خپل مكر او حيله بازئ مغرور يئ، حال دا چې د الله تعالى مكر ستاسې له مكره او تدبيره ډېر ژر او سريع الأثر دى.

هُوَ ٱلَّذِي يُسَيِّرُكُمۡ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِۖ حَتَّىٰٓ إِذَا كُنتُمۡ فِي ٱلۡفُلۡكِ وَجَرَيۡنَ بِهِم بِرِيحٖ طَيِّبَةٖ وَفَرِحُواْ بِهَا جَآءَتۡهَا رِيحٌ عَاصِفٞ وَجَآءَهُمُ ٱلۡمَوۡجُ مِن كُلِّ مَكَانٖ وَظَنُّوٓاْ أَنَّهُمۡ أُحِيطَ بِهِمۡ دَعَوُاْ ٱللَّهَ مُخۡلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ لَئِنۡ أَنجَيۡتَنَا مِنۡ هَٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ ٱلشَّٰكِرِينَ ٢٢ فَلَمَّآ أَنجَىٰهُمۡ إِذَا هُمۡ يَبۡغُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ بِغَيۡرِ ٱلۡحَقِّۗ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغۡيُكُمۡ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُمۖ مَّتَٰعَ ٱلۡحَيَوٰةِ ٱلدُّنۡيَاۖ ثُمَّ إِلَيۡنَا مَرۡجِعُكُمۡ فَنُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ٢٣

الله هغه ذات دى چې گرځوي تاسي (په خپلو پښو يا په سورلئ) په وچه او په بحر (سمندر په لامبو يا مركوب)، تر هغه پورې چې سواره شئ په كشتيو كې، او روانه شي (دا بېړئ) سره له دغو (خلقو چې ناست وي په كې) په هغه باد ښه (موافق له ضرورت د كشتئ سره) او خوشاله شي په هغه سره؛ نو راشي هغه كشتئ ته باد سخت (مخالف د مراد جاكړ)، او راشي دوى ته موج (چپې د سمندر) له هر ځايه (او له هر لوري) او وگڼي دوى دا چې بېشكه دوى احاطه وكړه شوه پر دوى (په موجباتو د هلاك)؛ دعا وكړي وبولي دوى الله (لپاره د نجات خپل) چې خالص كوونكي وي ده ته دين خپل (او وايي): قسم دى كه نجات دى راكړ مونږ ته له دې (سختئ)؛ نو خامخا به شو مونږ هرومرو (لازماً) له شُكر كوونكو. نو هر كله چې نجات وركړي دوى ته (الله له غرقه او وچې ته راشي)؛ ناڅاپه دوى فساد شرارت كوي په ځمكه

کې په ناحقه سره، ای خلقو! بېشکه همدا خبره ده چې جزاء د شرارت ستاسې په نفسونو (ځانونو) ستاسې ده، (اوس کوئ تاسې) عیش د ژوندون لږ خسیس، بیا خاص مونږ ته راتله ستاسې دي (په قیامت کې) نو خبر به درکړو تاسې ته په هغه عمل چې وئ تاسې چې کاوه به مو.

**تفسیر:** ابتداء کې هوا ښه نرمه، او د بېړیو کشتیو او جهازونو او نورو په مقتضاء سره برابره وي، مسافران په کې خاندي، لوبې کوي، او په ډېره آرامی او هوسایی سره په کې ناست وي، یو ناڅاپه یو زورور طوفان پیدا شي، او د څلورو خواوو د اوبو غرونه راپورته کړي، او له کشتی یا له جهازه سره یې ووهي.

نو کله چې دغه د لوی سیند (بحر) مسافران وپوهیږي، چې له هره لوري د مرګ موجباتو راچاپېر کړي یو، او د تښتېدلو او وتلو هیڅ کومه لار نه ده پاتې؛ نو دوی فرضي او مصنوعي معبودان پرېږدي، او یواځې واحد لوی الله د خپل نجات لپاره رابولي، لکه چې دانسان د اصلي فطرت تقاضا ده، هر کله چې له هر ځیز څخه مایوس شي، نو خاص د الله تعالی بندګي ځان ته غوره کوي، او ډېر پوخ عهد او کلکه وعده وکړي، چې که له مصیبته پاک الله ماته نجات راکړي؛ نو زه به یې شکر کوونکی تابع او طائع اوسم، او له سره به کُفران لوري ته نه ورځم، او عصیان او طُغیان ته به نه نژدې کېږم، لیکن هر کله چې لږ څه امن او ډاډینه (قلاري) یې ور په برخه شي، او وچې ته یې پښه ورسیږي؛ نو په شرارتونو باندې لاس پورې کړي، او په ملک کې شور، شر، فتنه او فساد اچوي، د لږ څه مدّت لپاره هم په خپل عهد او ایمان ټینګ نه پاتې کیږي.

**تنبیه:** په دغه آیت کې د اسلام هغو مدعیانو ته لوی عبرت دی، چې د جهاز د طوفاني کېدلو په وخت کې هم د «واحد، احد الله» څخه مخ اړوي، او له غیر الله څخه مدد غواړي، او هغوی خپلې مرستې (مدد) ته رابولي.

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم﴾ الآیه - یعني ستاسې د شرارتونو وبال پر تاسې لویږي، که څو ورځې مو شرارتونه وکړل، او فرضاً څه دنیوي ګټه (فائده) مو هم حاصله کړه؛ نو د کار په پای (انجام) کې د پاک الله دربار ته ورتګ دی، هلته به ستاسې ټول اعمال ور د مخه کیږي، رب العزت جل جلاله به د هغه سزا درکړي، او تاسې ته به دا درښکاره کوي چې ستاسې اعمال څرنګه وو.

إِنَّمَا مَثَلُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا كَمَآءٍ أَنزَلْنَـٰهُ مِنَ ٱلسَّمَآءِ فَٱخْتَلَطَ بِهِۦ نَبَاتُ ٱلْأَرْضِ مِمَّا يَأْكُلُ ٱلنَّاسُ وَٱلْأَنْعَـٰمُ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ ٱلْأَرْضُ زُخْرُفَهَا وَٱزَّيَّنَتْ وَظَنَّ أَهْلُهَآ أَنَّهُمْ قَـٰدِرُونَ عَلَيْهَآ أَتَىٰهَآ أَمْرُنَا لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنَـٰهَا حَصِيدًا كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِٱلْأَمْسِ كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ ٱلْـَٔايَـٰتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿۲۴﴾

بېشکه همدا خبره ده چې مثال د دې ژوندون لږ خسیس (په ژر تېرېدلو کې) په شان د اوبو دی چې نازلې کړې دي مونږ هغه له (طرفه د) آسمانه؛ نو خلط شي په دې اوبو سره (هر قسم) زرغونه د ځمکې له هغه (قسم) چې خوري یې بنیادمان (لکه غلې، مېوې، سابه) او چارپایان (لکه انواع د وښو)، تر هغه پورې چې واخیست ځمکې زینت خپل او ښه ښایسته شي (په اقسام د نباتاتو، اشکالو او رنګونو) او ګمان وکړي خاوندان د دې (ځمکې) چې بېشکه دوی قادر دي (په هر شانتې ګټه (فائده) اخیستلو) په دې ځمکه باندې؛ ناڅاپه راشي دې (ځمکې) ته امر (حکم) ځمونږ د شپې یا د ورځې (په خرابی د دې غلو او مېوو) نو وګرځوو مونږ دغه (فصل د ځمکې) (لکه) ریبلې شوې ګواکې نه وو (دغه کښت په دغې ځمکې کې) پرون، همداسې په تفصیل سره بیانوو مونږ دلائل لپاره د هغه قوم چې فکر کوي.

تفسير: ځيني د ﴿فَاخْتَلَطَ بِهِ نَبَاتُ الْأَرْضِ﴾ معنی د پيداوارو کثرت اخيستی دی، ځکه هر کله چې د ځمکې پيداوار زيات قوي کيږي؛ نو يو جزء يې له بل سره ګډيږي، او يو له بله سره نښلي.

ځينو علماوو د ﴿بِهِ﴾ «باء» د مصاحبت لپاره اخيستې ده، دغسې معنی يې کړې ده، چې د ځمکې زرغونه له اوبو سره ګډ او مرکب کيږي، ځکه چې د نباتاتو غـذا ګرځي، د شيخ الهند «رحمه الله تعالی» له صنيع څخه مترشح کيږي، چې له اختلاطه داسې مراد اخيستی دی چې: د ځمکې او اوبو د يو ځای کېدلو څخه هغه نباتات چې راوځي، په هغه کې د انسانو او حيواناتو غـذا مخلوطه او ګډه وډه وي، مثلاً د غنمو په بوټي کې دانه د بنيادمانو غـذا ګرځي، او واښه يې هم د حيواناتو آذوقه کيږي، همداسې په ونو کې هم مېوې او پاڼې وي، چې د دوی خوړونکي هم سره بېل انواع لري، او سره جلا جلا (جدا جدا) دي.

﴿حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذَتِ الْأَرْضُ زُخْرُفَهَا﴾ الآيه ـ يعنې مختلفو الوانو او اشکالو نباتاتو د ځمکې مخ مزيّن او ښايسته کړی وي، او کښتونه (فصلونه) مزارع او مراتع داسې تيار شوي وي، چې په هغه د هغوی د خاوندانو پوره ډاډينه (تسلي) او اعتماد پيدا شوی وي، چې اوس له هغه څخه د فائدې آخيستلو پوره قوت او نېږه رارسېدلې ده.

﴿أَتَىٰهَآ أَمْرُنَا﴾: الآيه ـ يعنې ناڅاپه د الله تعالی په حکم د شپې يا د ورځې له مخې کوم آفت (مثلاً سخته سيلۍ يا ږلۍ يا ملخ يا نور) وروررسيږي، او على هذا القياس دغه آفت هغه زراعت بيخي داسې پنا کړي، ګواکې له سره هلته يوه خاشه نه وه زرغونه شوې، کټ مټ (هوبهو) د همدې په شان د دنيا ژوندون هم مثال لري، اګر که دغه ژوندون ډېر حسين او تروتازه په نظر راشي، تر دې چې بې وقوف خلق د دې په رونق او ښايست باندې مين او مفتون شي، او اصلي حقيقت بيخي هېر کړي، ليکن د هغه زرغونتيا، ښايست، زينت د څو ورځو له مخې دی، چې ډېر ژر د فناء او زوال په لاس نسياً منسياً کيږي.

فائده: ﴿لَيْلًا أَوْ نَهَارًا﴾ «په شپه او ورځ کې» يې ښايي د دې لامله فرمايلي وي چې شپه د غفلت وخت وي، او په ورځې کې خلق عموماً ويښ وي، مطلب يې دا دی کله چې د الله تعالی حکم راوررسيږي؛ بيا که څوک ويښ وي که اوده، غافل وي که هوښيار؛ هيڅ يو سړی په هيڅ يوه حالت کې د هغه مخه نشي نيولی.

﴿وَٱللَّهُ يَدْعُوٓا۟ إِلَىٰ دَارِ ٱلسَّلَٰمِ وَيَهْدِى مَن يَشَآءُ إِلَىٰ صِرَٰطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٢٥﴾﴾

او الله بولي (بندګان خپل) کور د سلامتيا ته (چې جنت دی)، او لاره ښيي هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د هدايت د ده) لارې سمې ته (چې اسلام دی).

تفسير: يعنې د دنيا پر زائل او فاني ژوندون مه نازېږئ، او مه پرې تېر وځئ ! او د دار السلام يعنې د جنت په لوري راشئ ! پاک الله تاسې د سلامتی کور ته بولي، او تر هغه ځايه پورې يې د رسېدلو لاره هم درښوولې ده، همغه کور دی چې اوسيدونکي يې لـه هـر راز (قسم) رنځ، غـم، پرېشانی، تکليف، نقصان، آفت، فنا، زوال او نورو عوارضو څخه صحيح او سالم پاتې کيږي، او پرښتې پرې سلام آچوي، او پخپله د رب العزّت جل جلاله له حضوره به هم د سلام تُحفې وررسيږي.

﴿لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا۟ ٱلْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ ۖ وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ ۚ أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٦﴾﴾

لپاره د هغو کسانو چې نيکي يې کړې؛ نېکه (جزا جنت) او زيات (له اجره هم شته)، او نه به پټوي مخونه د دوی هيڅ تور ګرد او غبار او نه هيڅ ذلت (رسوايي)، دغه (محسنان) صاحبان د جنت دي، همدوی په دغه جنت کې تل اوسيدونکي دي.

تفسير: يعنې ښه کار کوونکو ته هلته ښه ځای (جنت) وررسيږي، او له هغه څخه زيات هم ور په برخه کيږي، يعنې د الله تعالى رؤيت (ليدل، ديدار، رزقنا الله تعالى).

د «زيادت» تفسير په لقاء الله او د الله تعالى په ليدلو سره په ځو صحيحه وو احاديثو کې وارد شوی دی، او له ډېرو صحابه وو او تابعينو رضي الله تعالى عنهم أجمعين څخه منقول دي، صهيب رضي الله تعالى عنه وايي چې: «رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه آيت ولوست، او ويې فرمايل: «کله چې ګرد جنتيان په جنت او ټول دوزخيان په دوزخ کې داخل شي؛ نو يو غږ کوونکی به غږ وکړي: «ای جنتيانو ! ستاسې لپاره د الله تعالى يوه وعده باقي ده، چې هغه اوس پوره کېدونکې ده»، جنتيان به وايي چې: «هغه څه شی دی؟ آيا پاک الله په خپل فضل سره ځمونږ د حسناتو پانګه نه ده درنه کړې؟ آيا ځمونږ مخونه يې سپين او نوراني کړي نه دي؟ آيا ده مونږ له دوزخه نه يو ژغورلي (بچ کړي)؟ او جنت غوندې يو لوی مقام ته يې نه يو داخل کړي؟» دلته د دوی له منځه به پرده لرې کړل شي، او جنتيان به د الله تعالى په لوري نظر وکړي؛ نو قسم په الله چې د الله تعالى له هر قسم ورکړيو شويو نعمتونو څخه جنتيانو ته د الله تعالى ليدل به زيات محبوب او مطلوب وي»، او د دې په اندازه به بل هيڅ شی د دوی په سترګو کې ښه نه ورځي، او د دوی سترګې به نه پخوي، او نه يې رڼوي، پاک الله مو دې خپله لقاء پخپل فضل او کرم سره روزي کړي، او سترګې مو دې روښې او زړونه مو دې پرې خوښ کړي، آمين ثم آمين.

﴿وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ﴾ الآيه - يعنې د عرصات په محشر کې همغسې چې د فجّارو کفارو پر مخونو سخت ذلت، ظلمت، خواري او رسوايي ښېې او آثار به ښکاري، بالمقابل د هغه به د جنتيانو څېرې ډېرې نوراني، ښايسته او رونقدارې وي، او بيخي د ملاحت او صباحت څخه به ډکې وي.

وَالَّذِينَ كَسَبُوا السَّيِّئَاتِ جَزَاءُ سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ مَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ كَأَنَّمَا أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِنَ اللَّيْلِ مُظْلِمًا أُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٧﴾

او هغه کسان چې کسب يې کړی دی د بدو (لکه کفر او نفاق) جزا د بدۍ (د دوی) په قدر د بدۍ ده، او پټوي به دوی لره ذلت (رسوايي)، نه به وي دوی ته له (عذابه د) الله هيڅ ساتونکی، ګواکې پټ کړی شوي دي مخونه د دوی په قطعو (ټوټو) د شپې سره حال دا چې تک تور به وي، دغه (مسيئان) صاحبان د اور دي، همدوی په دغه دوزخ کې تل اوسېدونکي دي.

تفسير: يعنې له بدۍ څخه به يې سزا زياته نه وي.

﴿وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ﴾ يعنې: د دوی څېرې به دومره توره تياره وي؛ ګواکې د تورې تيارې شپې توروالی د دوی په مخونو باندې لګېدلی دی، پاک الله مو دې له دغه مخ توروالي او نورو عذابونو څخه پخپل فضل او کرم سره وساتي. !

وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ أَنْتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ وَقَالَ شُرَكَاؤُهُمْ مَا كُنْتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ ﴿٢٨﴾

او (ياد کړه ای محمده !) هغه ورځ چې راجمع به کړو دا خلق ټول، بيا به ووايو هغو کسانو ته چې شرک يې کړی دی: (ټينګ ودرېږئ) په ځايونو خپلو کې تاسې او (هم) شريکان ستاسې، نو بيلتون به وکړو مونږ په منځ د دوی کې، او وبه وايي شريکان د دوی (دوی ته) چې: نه وئ تاسې چې خاص مونږ لره به مو عبادت کولو.

**تفسير:** يعنې هغو کسانو چې پخپل خيال کې د الله تعالى لپاره شريکان درولي وو، يا ځينو ته يې د الله ځامن او لونړې ويل، مثلا مسيح عليه السلام چې د نصاراوو په نزد «ابن الله» بلکه «عين الله» وو، يا «ملائكة الله» يا «أحبار» يا «رهبان» چې دوى ته هم له يوه حيثيته د الوهيت منصب ورکړى شوى وو، يا اصنام او اوثان چې د مکې مشرکانو پر دوى هم د الوهيت اختيارات تر يوې اندازې پورې تقسيم کړي وو، او هغه څوک چې د قبرونو عبادت کوي؛ په دې ګمان چې اولياء کرام ځمونږ د الله تعالى په نزد شفاعتګران دي؛ نو دغو ګردو ته به پخپلو ځايونو کې حسب المراتب د درېدلو حکم وشي.

فَكَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ إِن كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغَافِلِينَ ﴿٢٩﴾

نو کافي (بس) دى الله شاهد په منځ ځمونږ او په منځ ستاسې کې؛ بېشکه شان دا دى چې: وو مونږ له عبادت ستاسې خامخا بې خبران.

**تفسير:** يعنې په دې دقّت کې به عجيبه پرېشاني او نفسي نفسي (ځان ځاني) وي، د عابدينو او معبودينو په منځ کې به بېلتون لوېږي، او د اوهامو او خيالاتو هغه مزي چې پخپل خيال سره يې سم په دنيا کې تړلي وو؛ هغه ټول به شلېږي، په دغه هولناک وخت کې کله چې مشرکينو د خپلو دغو فرضي معبودانو ځنې ډېر زيات توقعات (هيلې) درلودلې، هغوى به په ښکاره ډول سره جواب ورکړي، چې تاسې له مونږ سره څه تعلق لرئ؟، تاسې دروغ وايئ چې مونږ د دوى عبادت کولو، تاسې سم له خپلې عقيدې سره د هغو شيانو عبادت چې کولو او د هغو لپاره مو د الوهيت هغه صفات تجويزول چې په دوى کې له سره موجود نه وو؛ نو په حقيقت کې هغه بندګي د «مسيح» يا د «ملائكو» عبادت نه ګڼلى شي، او نه دغه عبادت په واقع سره د بې روحو بتانو دى، بلکه تاسو د خپل خيال او وهم يا د لعين شيطان عبادت کولو، او هغه به مو پرښتې يا کوم نبي يا کوم ولي يا کومې ځېرې يا نورو ته منسوبوو، پاک الله شاهد دى چې ځمونږ په خوښه يا رضا او اذن تاسې دغه حرکت نه دى کړى، مونږ نه وو خبر چې تاسې د خپل انتهايي حماقت او سفاهت او ناپوهۍ لامله مونږ د الله تعالى په مقابل کې معبودان دروئ.

هُنَالِكَ تَبْلُوا كُلُّ نَفْسٍ مَّا أَسْلَفَتْ ۚ وَرُدُّوا إِلَى اللَّهِ مَوْلَاهُمُ الْحَقِّ ۖ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٣٠﴾

په دغه ځاى کې به ښکاره ومومي هر يو نفس جزا د هغه عمل چې پخوا يې لېږلى دى، او بېرته به بوتلل شي دوى الله ته چې مولى د دوى دى حق (او واقعي واکدار د دوى دى)، او ورک به شي له دوى نه هغه دروغ چې وو دوى چې جوړول به يې (له شفاعت د بُتانو او نورو معبودانو).

**تفسير:** يعنې ټول دروغ او بې اصله توهمات به بيخي له منځه ورک شي، او هر څوک به په رأي العين ګوري چې پرته (علاوه) له هغه حقيقي مالک څخه د بل په لوري د رجوع کولو ځاى نشته، او د هر يوه سړي به د خپلو ښو او بدو په اندازه کولو باندې علم ورسيږي، چې هغه څومره وزن او اندازه لري.

قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَن يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَن يُدَبِّرُ الْأَمْرَ ۚ فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ ۚ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣١﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) څوک رزق درکوي تاسې ته له جانبه د آسمانه (لکه په باران) او له ځمکې (لکه په نباتاتو)؟ بلکه آيا څوک دى چې مالک دى د (پيدا کولو د) غوږونو او د سترګو؟ او څوک دى چې راوباسي ژوندى (لکه بچى، مؤمن، عالم، کنبت) له مړي (له هګۍ،

کافر، جاهل، دانه)؟ او راوباسي مړی (لکه نطفه) له ژوندي (لکه حيوان)؟ او څوک دی هغه چې تدبير کوي (د هر کار په منځ د خلقو کې)؟ نو ژر به ووايي دوی (چې هغه) الله دی، نو ووايه (ای محمده ! دوی ته !) نو آيا نه ويريږئ تاسې (له عذابه د الله).

فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ ۚ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلٰلُ ۖ فَأَنّٰى تُصْرَفُوْنَ ﴿۳۲﴾

نو دغه (موصوف په دغو صفاتو) الله رب ستاسې دی حق، نو څه شی دي وروسته له حقه مګر ګمراهي، نو کوم خوا ته ګرځولی شئ تاسې (له حقه، سره د قيام د برهان په حقانيت د اسلام).

**تفسير:** مشرکينو به هم اعتراف کولو چې دغه کليه امور او عظيم الشأن کار ما سوا د الله تعالی څخه بل هيڅوک يې نشي کولی، نو ځکه يې وفرمايل: کله چې اصلي خالق او مالك او د تمام عالم مدبّر تاسې هم دغه پاك الله ګڼئ؛ بيا نو ولې نه ويرېږئ چې ما سوا د دغه الله څخه نور خپل معبود وګرځوئ؟، وروسته د هغه د اقرار کولو څخه چېرې ژر تر ژره پر خپلو پوندو بېرته ګرځئ، کله چې په رښتيا سره همغه ذات واحد احد الله دی؛ وروسته له رښتيا څخه پر ته (علاوه) له دروغو بل شی نه دی پاتې.

كَذٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِيْنَ فَسَقُوْٓا أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۳۳﴾

همداسې (لکه چې ربوبيت لايق دی الله ته) لايق شو حکم (لازم شو عذاب) د رب ستا پر هغو کسانو چې نافرمانه دي د الله تعالی له حکم نه (په سبب د دې) چې دوی ايمان نه راوړي.

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ ۚ قُلِ اللّٰهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ فَأَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ﴿۳۴﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) آيا شته له دې شريکانو ستاسې هغه څوک چې پيدا کړي دی خلق په اول کې، بيا ژوندي کړي دوی (پس له مرګه)؟ ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې الله اول پيدا کوي خلق بيا ژوندي کوي يې (وروسته له مرګه)؛ نو کوم لوري ته اړول کېږئ تاسې (له سمې لارې، چپې ته)؟.

**تفسير:** تر دې ځايه پورې د «مبدأ» ثبوت وو، اوس د «معاد» ذکر دی، يعنې کله مو چې اعتراف وکړ، چې د ځمکې او د آسمان او د سمع او بصر او د موت او د حيات او د ټولو پيدا کوونکی او اداره کوونکی هم دغه پاك الله دی؛ نو ظاهر دي چې د مخلوقاتو بيا پيدا کول او وروسته له مرګه بيا ژوندي کول او د دوی اعاده هم د همغه فعل کېدی شي، بيا د انبياوو عليهم السلام په ژبو کله چې دوی پخپله د هغه د اعاده کولو خبر ورکوي، د هغه په تسليم څه عذر شته؟

قُلْ هَلْ مِنْ شُرَكَآئِكُمْ مَّنْ يَّهْدِيْٓ إِلَى الْحَقِّ ۚ قُلِ اللّٰهُ يَهْدِيْ لِلْحَقِّ ۗ أَفَمَنْ يَّهْدِيْٓ إِلَى الْحَقِّ أَحَقُّ أَنْ يُّتَّبَعَ أَمَّنْ لَّا يَهِدِّيْٓ إِلَّآ أَنْ يُّهْدٰى ۚ فَمَا لَكُمْ ۟ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۵﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې آيا شته له دې شريکانو ستاسې هغه څوک چې لاره وښيي حق ته؟ (بيا هم) ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې الله لاره ښيي حق ته، آيا نو هغه څوک چې لاره ښيي حق ته ډېر لايق دی د دې چې متابعت يې وکړی شي؟ او که هغه چې (پخپله هم) لاره نشي موندلی؟ مګر چې ده ته لاره وښوولی شي، نو څه باعث دی تاسې لره، څرنګه حکم کوئ؟.

تفسير: د «مبدأ» او «معاد» په منځ کې د هدايت د واسطو او وسائلو ذکر دی، يعنې همغسې چې ړومبنی پيدا کوونکی او وروستنی ژوندی کوونکی همغه يو الله تعالی دی او بل څوک نه دی؛ نو همدغه پاک الله د خپلو بندګانو د «معاد» صحيح او رښتيا لار ښوونکی دی، نه بل څوک، او په مخلوقات کې: لوی دی که وړوکی؛ ټول د ده لارښوونې ته محتاج دي، د ده پر هدايت او لار ښوونه باندې ښايي چې ټول لاړ شي.

باطل معبود په څه حساب کې دی چې چاته لار ښوونه وکړي؟ آيا دی پخپله بې د بل چا له هدايته او مرستې (مدد) او لاس نيولو يو پل هم واخيستی شي؟ نو ځکه د ده لارښوونه د بندګانو په حق کې د قبول قابله او وړ نه ده، چې ګونډې الله تعالی بې واسطې د هغو لارښوونه کړې وي، بيا دا څومره بې انصافي ده، چې انسان هغه مطلق هادي پرېږدي، او د دغو باطلو او کمزورو معاونينو او لار ښوونکو پسې لوېږي، او د همدوی اسره او هيله (اميد) ونيسي.

وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا ۚ إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

او نه کوي متابعت اکثر د دوی مګر د ګمان (اټکل)، بېشکه ګمان (اټکل) نه بې پروا کوي (هيڅوک) له حقه د هيڅ ځيز، بېشکه الله ښه عالم دی په هغه څه چې کوي (يې) دوی (نو جزا به ورکړي).

تفسير: کله چې معلوم شو چې «مبدي» او «معيد» او «هادي» همغه الله تعالی دی؛ نو د هغه په خلاف د شرک د لارې غوره کوونکو ته فکر کول پکار دي، چې د دوی په لاس کې کوم دليل او برهان شته؟ چې د هغه په بناء د «توحيد» قويم او قديم مسلک پرېږدي او د ګمراهی او ضلالت په کوهي کې ځانونه اچوي، رښتيا خبره خو دا ده: چې د دوی سره پرته له ظنونو او اوهامو او چټي او مهملو خبرو څخه بل هيڅ دليل او برهان نشته، نو د اټکل غشی د حق او صداقت په بحث کې څه کار ورکولی شي؟.

وَمَا كَانَ هَٰذَا الْقُرْآنُ أَنْ يُفْتَرَىٰ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلَٰكِنْ تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيلَ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٣٧﴾

او نه دی دا قرآن (سره له داسې فصاحته، بلاغته او اعجازه) چې په دروغو جوړ کړ شي غير له الله نه، وليکن دی تصديق (رښتينی) کوونکی د هغه (کتاب) چې تېر شوی دی په مخکې د ده، او دی تفصيل کوونکی د هغه څه چې ليکلي شوي دي (پر تاسو)، نشته هيڅ شک په ده کې (چې راغلی دی) له لوري د رب د عالميانو.

تفسير: د پاک قرآن علوم او معارف او احکام او قوانين او معجز او محير العقول فصاحت او بلاغت او جزالت باندې له نظر اچولو څخه دغه راڅرګندېږي چې: دغه پاک قرآن بېشکه همداسې يو کتاب دی، چې د پاک قدوس الله له لوري نازل شوی دی، او د ما سوا الله څخه بل هيڅوک داسې يو معظم کتاب نشي راوړاندې کولی.

پوره قرآن دې خو پخپل ځای پاتې وي، د هغه د يوه سورت له مثل راوړلو څخه هم ټول انسانان او پيريان عاجزان او ناتوان دي، لکه چې وروسته راځي: (او نه دی دا قرآن چې لولي يې محمد صلی الله عليه وآله وصحبه وسلم په تاسې داسې چې جوړ کړی شي د ځانه، بلکه هيڅوک يې نشي ويلی د ځانه غير له الله تعالی نه، يعنې داسې نه ښايي چې دا کلام د بشر وي، وليکن رالېږلی دی الله پاک دا قرآن لپاره د تصديق د هر هغه کتاب چې تېر شوی دی په مخکې د ده، او په صدق يې هر څوک قايل دي، چې تورات او انجيل او زبور دی، او له دغو سره سم او مطابق دی، د دين په اصولو کې ډېر تعجب دی چې هغه حق شو او دغه نشو، بلکه د لوی قرآن کلام الاهيتوب له دې نه

ظاهر دی، چې د ګردو پخوانيو آسماني کتابونو مصدّق او د هغو د اصلي مضامينو حفاظت او د هغو د پخوانيو ويلو صداقت په علانيه ډول سره کوي.

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٨﴾

بلکه آيا وايي دوی چې (محمد) له ځانه جوړ کړی دی دغه (قرآن)، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې؛ نو راوړئ يو (لنډ) سورت په شان د ده (په اعجاز کې) او راوبولئ تاسې هغه څوک چې ستاسې له لاسه کيږي (دې معارضې ته لپاره د معاونت خپل) غير له الله څخه که يئ تاسې صادقان (رښتيني په دغه دعوی د افتراء کې).

**تفسير:** يعنې که ما دغه قرآن جوړ کړی وي؛ نو تاسې هم چې ما غوندې بشر يئ، ګرد سره راټول شئ، او د ده د يوه سورت پشان يو سورت راجوړ کړئ ! که د تمام جهان ليکونکي او لوستونکي او اميان سره راغونډ شي، او يو وړوکی سورت لکه قرآن غوندې راوړاندې کړي؛ نو وپوهېږئ چې قرآن عظيم الشأن هم د کوم يوه بشر کلام دی، چې د هغه مثال نور خلق جوړولی شي، مګر دغه خبره محاله ده چې تر أبد الآباد پورې کوم مخلوق داسې حوصله وکړی شي، او د قرآنکريم پرله پسې همغه دعوی ده، چې زه د الله قدوس کلام يم، او همغسې چې د الله تعالی د ځمکې په شان بله ځمکه او د الله تعالی د لمر او د الله تعالی د آسمان په شان بل آسمان له پيدا کولو څخه ټول جهان عاجز او حيران دی، همغسې د الله تعالی د قرآن په شان د بل بيان يا قرآن د اتيان څخه هم ټول جهان عاجز او حيران دی.

﴿قُل لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْإِنسُ وَالْجِنُّ عَلَىٰ أَن يَأْتُوا بِمِثْلِ هَٰذَا الْقُرْآنِ لَا يَأْتُونَ بِمِثْلِهِ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيرًا﴾ (۱۵ جزء د بني اسرائيل سورت (۸۸) آيت (۱۰) رکوع) پر دغې مسئلې مو په هغې رسالې کې چې په (اعجاز القرآن) سره موسومه ده؛ په زړه پورې خبرې کړي دي، شايقين دې هغه ووايي.

بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ۚ كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ ﴿٣٩﴾

بلکه نسبت د دروغو يې وکړ په هغه قرآن چې پوره نه وو رسېدلی دوی په علم د هغه، او نه وو راغلی دوی ته معنی او حقيقت د دې قرآن، همداسې تکذيب کړی وو (د خپلو انبياوو) هغو کسانو چې وو پخوا له دوی نه، نو وګوره ته چې څرنګه وو عاقبت (آخره خاتمه) د ظالمانو (تکذيب کوونکو د انبياوو).

**تفسير:** يعنې پاک قرآن ته «مفتري» ويل د پوه او عقل کار نه، بلکه محض د ناپوهی، جهل، سفاهت او قلّت تدبر له جهته دی، او تعصب او عناد هغو ته اجازه نه ورکوي، چې په سړه سينه او قرار زړه د قرآن په حقائقو او د ده د اعجاز پر وجوهو غور وکړي !.

ځينو مفسرينو د «تأويل» معنی په «تفسير» سره کړې ده، يعنې د پاک قرآن مطالب د دوی په دماغو کې په پوره ډول سره نه دي لويدلي، او ځينې له هغه قرآني وړاندوينې مرادوي، يعنې د تکذيب يوه وجه د ځينو ناپوهانو او ساده کسانو په حق کې دا هم ده، چې د مستقبل په نسبت هغه اخبار چې پاک قرآن ورکړي دي، د هغو وقوع تر نن پورې نه ده شوې، نو ځکه دوی منتظر دي، چې د هغو ظهور به کله کيږي، مګر لږ فکر کول په کار دي، چې دغه د تکذيب سبب څرنګه کېدی شي؟.

وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِۦ وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِۦ ۚ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٤٠﴾

او ځيني له دې (مکذبانو) هغه دي چې ايمان راوړي پر دغه (قرآن) او ځيني له دوی نه هغه دي چې ايمان نه راوړي په دغه (قرآن)، او رب ستا ښه عالم دی پر (حال د) مفسدانو.

تفسير: يعنې وروسته له دې نه له دوی څخه ځينې کسان مسلمان کېدونکي دي، له هغو څخه تاسې ستر ګې واړوئ ! باقي هغه کسان چې پر خپلو شرارتونو قايم پاتې کيږي؛ پاک الله پر هغو ټولو عالم دی، او په مناسبو موقعو کې به هغوی ته مناسبه سزا ورکوي.

وَإِن كَذَّبُوكَ فَقُل لِّى عَمَلِى وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ ۖ أَنتُم بَرِيٓـُٔونَ مِمَّآ أَعْمَلُ وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٤١﴾

او که تکذيب وکړي دوی ستا؛ نو ووايه (ای محمده ! دوی ته) ماته (جزا د) عمل ځما ده، او تاسې ته (جزا د) عمل ستاسې ده، تاسې بېزاره يئ له هغه کار چې کوم يې زه، او زه هم بېزاره يم له هغه کارونو چې کوئ يې تاسې.

تفسير: يعنې که د داسې دلائلو او براهينو د اورېدلو څخه وروسته هم دغه خلق ستاسې تکذيب وکړي؛ نو تاسې ووايئ چې: ما خو خپل فرض اداء کړی دی، مګر که تاسې سره له پوهولو هم نه پوهېږئ؛ نو اوس ځمونږ او ستاسې لاره بېله ده، تاسې د خپل عمل ذمه وار يئ، او زه د خپل عمل، هر چا ته به د ده د عمل ثمره ور په برخه کيږي.

وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤٢﴾ وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ
تَهْدِى ٱلْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يُبْصِرُونَ ﴿٤٣﴾

او ځيني له دې کفارو هغه کسان دي چې غوږونه نيسي تا ته (تمسخراً يا ظاهراً)، آيا نو ته اورول کولی شې کاڼه ته؟ (بلکه نشې کولی) او اګر که وي دوی چې هيڅ عقل هم نه لري، (سمع او عقل يې دواړه ورک وي). او ځيني له دوی هغه دي چې ګوري تاته (د سر په ستر ګو)، آيا نو ته به لاره وښيې ړندو ته؟ او اګر که وي دوی چې هيڅ بصيرت (او پوه) نه لري (يعنې نه يې شې پوهولی).

تفسير: ځيني خلق اګر که په ظاهره سره لوی قرآن او د رسول الله مبارک کلام آوري، او د دوی معجزات او کمالات ګوري، مګر هغه اورېدل او ليدل نافع دي چې د زړه په غوږونو او د زړه په ستر ګو سره وي، دا ستاسې په اختيار کې نه ده؛ چې کڼو زړونو او کڼو غوږونو ته خبره واوروې، په دې حال کې چې دوی د زيات کاڼه توب لامله قطعاً په حق کلام باندې نشي پوهېدی، يا ړندو زړونو ته د حق لار وښوولی شې؛ کله چې په دوی کې د بصيرت ماده نشته.

إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَظْلِمُ ٱلنَّاسَ شَيْـًٔا وَلَـٰكِنَّ ٱلنَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٤٤﴾

بېشکه چې الله نه کوي ظلم پر خلقو هيڅ قدر، وليکن خلق پر نفسونو (ځانونو) خپلو ظلم کوي (چې خپل عقل او حس په ملاهيو کې په کار آچوي).

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَن لَّمْ يَلْبَثُوٓا۟ إِلَّا سَاعَةً مِّنَ ٱلنَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ ۚ قَدْ خَسِرَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِلِقَآءِ
ٱللَّهِ وَمَا كَانُوا۟ مُهْتَدِينَ ﴿٤٥﴾

او هغه ورځ چې (پس له مرګه الله) راجمع کړي کفّار حال دا لکه چې نه وو تېر کړي دوی (په دنيا يا په قبر کې) مګر په قدر د يوه ساعت له ورځې؛ پېژني به دوی يو تر بله پخپلو منځونو کې (په دغې ورځې کې)، په تحقيق زيانمن شوي دي هغه کسان چې تکذيب يې کړی دی د ملاقات د الله، او نه وو دوی سمه صافه لاره موندونکي.

**تفسير:** يعني د محشر د هولناکو اهوالو او حوادثو د ليدلو څخه د ټول عمر، عيش، عشرت، آرامتيا او هوسايي دومره حقيره او قليله په نظر ورځي، چې ګواکې په دنيا کې يې د يوه ګړی څخه زياته هستوګنه نه وي کړې، او افسوس به کوي چې ټول عمر مې څومره په فضول او بېکاره تېر شوی دی، لکه چې سړی يوه ګړی يا دوه ګړی همداسې په چټې او چپو خبرو کې تېروي، او هم د هغه ځای د زړه چاودونکو مصائبو د ليدلو څخه داسې خيال کوي، چې ګواکې په دنيا کې دومره زيات نه دی پاتې شوی، او دغه وېروونکی وخت يو ناڅاپه رارسېدلی دی، هلته تش يو ساعت يا دوه ساعته پاتې شوی يم، او دغه دی چې سمدلاسه دلته رسېدلی او په دغو تکليفونو کې اخته شوی يم، کاشکې د هغه ځای د قيام مدت مې لږ څه ډېر وی، او دغې بدې ورځې ته دغسې ژر نه وی رسېدلی، ځينې مفسرين وايي چې: د برزخ (قبر) هستېدلو مدت به ورته لکه يوه ګړی ښکاري، والله أعلم.

وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴿٤٦﴾

او يا خو به وښيو خامخا تاته ځيني له هغه عذاب چې وعده يې کوو له دوی سره، او يا به وفات کړو تا (پخوا له تعذيب د دوی)؛ نو خاص مونږ ته بيا راتله د دوی دي، بيا نو الله شاهد دی په هغو کارونو چې کوي يې دوی (نو د دوی تعذيب به تاته دروښيو په آخرت کې).

**تفسير:** يعني هغه وعدې چې مونږ د کفارو د عذاب ورکولو او د اسلام د غالب او منصور ګرځولو کړي دي، لکه د «بدر» او نور مظفريت يا وروسته د وفات ستاسې به په عمل راځي؛ نو بنا پر دغه که ستاسې په حضور کې د هغو ظهور رانشي، په هر صورت دغه (وعدې) يقيني دي؛ چې هغه به ټولې پوره کېدونکې وي، که بنا پر کوم مصلحت کفارو ته په دنيا کې سزا ورنه کړه شي؛ نو په آخرت کې به وررسيږي، څمونږ له لاسه دوی نجات نشي موندلی، او نه تښتېدلی شي.

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ ۖ فَإِذَا جَاءَ رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٤٧﴾

او لپاره د هر امت يو رسول دی، نو کله چې را به غی (دوی ته) رسول د دوی (او دوی به ونه مانه)؛ نو حکم به وکړ شو په منځ د دوی کې په انصاف سره (چې رسول او مؤمنانو نجات وموندہ او مکذبين هلاکېدل) حال دا چې دوی به مظلومان نه وو (په دغه تعذيب کې).

**تفسير:** پخوا له دې نه د دې امت او د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ذکر وو، اوس د نورو اقوامو او اممو ضابطه رانښيي، چې هر جماعت او هرې فرقې ته د الله تعالى پيغام رسونکی رسول (استازی) ورلېږلي شوي دي، تر څو د الله تعالى حجّت تمام شي، د حجّت د اتمامه څخه پخوا هيچا ته عذاب نه ورکولی کيږي، خلق عمل لا له پخوا څخه کوي، مګر په دنيا کې هغو ته سزا وروسته د رسول د رسېدلو او د حجّت له اتمامه ورکوله شي.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٤٨﴾

او وايي دوی (په مسخرو يا په استبعاد) کله به وي دغه وعده که يئ تاسې صادقان (په دغه وعده کې؛ نو رايې ولئ).

قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ لِكُلِّ اُمَّةٍ اَجَلٌ ؕ اِذَا جَآءَ اَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَاْخِرُوْنَ سَاعَةً وَّلَا يَسْتَقْدِمُوْنَ ﴿۴۹﴾

ووايه (اى محمده !) نه يم مالك لپاره د ځان خپل (د دفع كولو) د ضرر او نه (د رسولو) د نفعي مګر د هغې (نفعې او ضرر) چې اراده وفرمايي الله، لپاره د هر امت يوه نېټه ده (د هلاك)، كله چې راشي هغه اجل (نېټه د مرګ) د دوى؛ نو نه به وروستى كيږي دوى (د دغې نېټې خپلې نه) يو ساعت او نه ړومبى كيږي دوى.

تفسير: يعني د عذابونو او نورو درلېږل د الله تعالى كار دى، او هغه ځما په قبضه او اختيار كې نه دى، زه خو د خپلې نفعې يواځې دومره مالك يم، چې هومره د الله تعالى اراده وي، نو بيا پر نورو د نېكى يا د بدى د وارد كولو مستقل اختيار ماته له كومه شو؟ د هر قوم لپاره يو مدّت او ميعاد د الله تعالى په علم كې مقرر دى، كله چې هغه ميعاد پوره شي؛ نو هغه وقت به ورسيږي، د بڼو د يوه رپ په اندازه تخلف په كې نه كيږي.

الغرض د عذاب د ژر غوښتلو څخه تاسې ته هيڅ يوه فائده په لاس نه درځي، هغه وقت چې د الله تعالى په علم كې غوټه او ټاكلى (مقرر) او معين شوى دى، هغه يوه دقيقه نه وړاندې او نه وروسته كيږي، او پوره په همغه وقت كې رسېدونكى او ورځكېدونكى دى.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُهٗ بَيَاتًا اَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ الْمُجْرِمُوْنَ ﴿۵۰﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته چې) آيا وينئ تاسې (يعني خبر راكړئ ماته) كه راشي تاسو ته عذاب د الله د شپې يا د ورځې؛ نو څه به وي هغه (عذاب) چې په جلتي سره غوښت له هغه نه مجرمانو (كافرانو)؟. (يا) نو څه به وكړي پخوا له هغه څخه مجرمان (ګناهګاران). (يا) نو څه دى هغه (عذاب) چې تلوار كوي په راتلو د هغه مجرمان (كافران).

تفسير: يعني كه د شپې اوده وي، يا د ورځې كله چې په دنيوي كارونو كې لګيا وئ، كه يو ناڅاپه د الله تعالى عذاب يې ونيسي؛ نو كه مجرم په دغه صورت كې جلتي هم وكړي؛ نو څرنګه به خپله ژغورنه (بچاو) او نجات وكړى شي؟ كله چې خپل ځان نشي ژغورلى (بچ كولى)؛ نو بيا د وخت د پوښتنې كولو څخه څه فائده وررسيږي؟.

اَثُمَّ اِذَا مَا وَقَعَ اٰمَنْتُمْ بِهٖ ؕ آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ كُنْتُمْ بِهٖ تَسْتَعْجِلُوْنَ ﴿۵۱﴾

آيا كله چې واقع شي (دغه عذاب) نو ايمان به راوړئ تاسې په هغه، (الله فرمايي): آيا اوس (ايمان راوړئ چې عذاب نازل شو) حال دا چې په تحقيق وئ تاسې چې په (غوښتلو د) دغه (عذاب) به مو جلتي كوله.

تفسير: يعني د عذاب دغه ژر غوښتنه د دې لپاره كوي چې هغوى د عذاب په نزول نه دي متيقن، كه دوى په دغه وخت كې متيقن كېدل؛ نو فائده يې ورته رسوله، او د خپل نجات لپاره به يې كوښښ كولو، كه د عذاب د راتګ څخه وروسته يې يقين راشي؛ نو څه فائده به ور ورسيږي؟ په دغه وخت كې به د الله تعالى لوري ويل كيږي، چې ښه اوس خو تاسې قائلان شوئ، حال دا چې پخوا مو دغه دروغ بلل، ځكه چې تقاضا كول هم د دروغ ګڼلو او مسخرو كولو په نيت وو، كه نه دغه وخت د اقرار كولو څخه هيڅ يوه فائده به در ونه رسيږي.

﴿ فَلَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهٖ مُشْرِكِيْنَ ﴿۸۴﴾ فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ اِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ؕ سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ﴾ (۲۴ جزء د المؤمن سورت (۸۴ – ۸۵) آيت (۹) ركوع).

﴿ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ۝٥٢﴾

بيا به وويل شي هغو کسانو ته چې ظلم يې کړی وي: وڅکئ عذاب (دائم) د همېشگۍ، آيا سزا به درکولی شي تاسې ته (درکولی به نشي) مګر په سبب د هغه شرک او تکذيب چې وئ تاسې چې کول به مو، (يا) نه درکولی شي جزاء مګر په سبب د هغې چې وئ تاسې چې کول به مو (چې هغه شرک او تکذيب ستاسو دی).

﴿وَيَسْتَنبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ ۖ قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ ۖ وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ۝٥٣﴾

او پوښتنه کوي له تا نه چې آيا حق دی دا (قرآن يا دعوی د نبوّت يا عذاب؟ که مسخرې کوې؟) ووايه (ای محمده ! دوی ته) هو ! قسم دې وي څما په رب خپل چې بېشکه دغه خامخا حق دی، او نه يئ تاسې عاجزوونکي (د الله چې له عذابه يې ځان خلاص کړئ).

تفسير: يعنې د غفلت په نشه کې بې سده شوي په تعجب سره پوښتنه کوي چې: آيا دغه خبره رښتيا ده چې مونږ وروسته له مرګه بيا ژوندي کيږو؟ او د دائمي عذاب خوند به وڅکو؟ آيا په رښتيا سره وروسته له بڅرکي بڅرکي کېدلو او له خاورو سره ګډېدلو به بيا له نوي ژوند سره ژوندي کيږو؟، (ای محمده !) تاسو وفرمايئ دوی ته چې دا څه د تعجب خبره ده؟ ! دغه پېښه خو هرومرو باليقين کېدونکې ده، ستاسې ګډ کېدل په خاوره کې او بڅرکي بڅرکي کېدل الله تعالی له دغه څخه نه شي عاجزولی چې د پخوا په شان بيا تاسې همغسې پيدا کړي او د شرارتونو خوند دروڅکوي.

﴿وَلَوْ أَنَّ لِكُلِّ نَفْسٍ ظَلَمَتْ مَا فِي الْأَرْضِ لَافْتَدَتْ بِهِ ۗ وَأَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَأَوُا الْعَذَابَ ۖ وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ ۚ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝٥٤﴾

او که بېشکه (مملوک شي) لپاره د هر نفس چې ظلم يې کړی وي (پخپل ځان باندې په کفر او شرک سره) ټول هغه چې دي په ځمکه کې؛ نو خامخا به فديه ورکړي دغه نفس په دغه (هر څه سره؛ له عذابه) او وبه مومي دوی (په زړونو خپلو کې - په ترک د ايمان) پښېماني کله چې ووينې عذاب او فيصله به وکړه شي په منځ د دوی کې په انصاف او حال دا چې دوی به مظلومان نه وي.

تفسير: يعنې که فرضاً د ځمکې د مخ ټولې خزانې د ده په قبضه کې وي؛ نو کوښښ به وکړي چې هغه ټول ورکړي، او د الله تعالی له عذابه ځان وژغوري (بچ کړي)، (کله چې دوی لره مالکيت د ﴿فِي الْأَرْضِ﴾ نشته؛ نو فديه ورکول هم نشته، او له عذابه هم نجات نه نومي، او ښکاره به کړي دوی پښېماني يا پټه به يې کړي، او وبه مومي دوی په زړونو خپلو کې پښېماني په ترک د ايمان سره، او دا ځکه چې دا لفظ د «أسروا» له اضدادو څخه دی، نو ځکه اطلاق يې پر دواړو صحيح دی، يعنې او بيا به مومي دوی په زړونو خپلو کې درد او پښېماني او) پخپلو حرکاتو به پښېمانيږي، او غواړي به چې نور خلق د دوی پر دغې پښېمانی خبر نشي، مګر بالآخر بې اختياره به هغه ښکاره کوي، او په هغه وخت کې به ووايي: ﴿يَا حَسْرَتَىٰ عَلَىٰ مَا فَرَّطتُ فِي جَنبِ اللَّهِ﴾ ﴿يَا وَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِي غَفْلَةٍ مِّنْ هَٰذَا﴾.

﴿أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ أَلَا إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝٥٥﴾

واورئ خبردار شئ ! چې بېشکه خاص الله لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو او په ځمکه کې دي (سره له آسمانونو او ځمکې ملکاً وخلقاً وعبيداً)، واورئ خبردار شئ ! چې بېشکه وعده د الله حقه ده، وليکن زيات له خلقو (چې کفّار دي) نه پوهيږي.

تفسير: يعنې په ګرد جهان کې يوائې د پاك الله حکومت دى، او د عدل او انصاف اجراءات کيږي، او هيڅ مجرم به ترې ونشي تښتېدى، او نه هيڅ يو مجرم به په رشوت او بلهې ورکولو خپل ځان ژغورلى (بچ کولى) شي.

هُوَ يُحۡيِۦ وَيُمِيتُ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ۝٥٦

همدغه (الله) ژوندي کول او مړه کول کوي، او همده ته بيا بيولي کېږئ (په قيامت کې لپاره د جزا).

تفسير: کله چې ژوندي کول او مړه کول دالله تعالى فعل او کار دى، نو د دوهم ځلي ژوندي کول به ورته څه اشکال ولري؟.

يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَتۡكُم مَّوۡعِظَةٞ مِّن رَّبِّكُمۡ وَشِفَآءٞ لِّمَا فِي ٱلصُّدُورِ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ ۝٥٧

اى خلقو ! په تحقيق راغلې ده تاسې ته موعظه (پند) له جانبه د رب ستاسې او شفاء (دارو) لپاره د هغو (ټولو روحاني امراضو) چې دي په سينو (د خلقو کې د جهالت) او هدايت او رحمت دى لپاره د مؤمنينو.

تفسير: دغه ټول د قرآنکريم صفات دي، «قرآن عظيم» له اوله تر آخره پورې داسې پند دى؛ چې خلق له مضرو او مهلکو خبرو څنې ژغوري (بچ کوي)، د زړونو د روحاني رنځورى لپاره د شفاء نسخه ده، د وصول الى الله او د الله تعالى د رضا لپاره ښوونکى دى، او خپل قبلوونکى په دنيا او آخرت کې د الله تعالى د رحمت وړ او مستحق ګرځوي، د ځينو محققينو په نزد په دغه آيت کې د انساني نفس د کمال مرتبو ته اشاره ده، يعنې هر هغه سړى چې قرآن کريم باندې متمسک شي، په دغو ټولو مراتبو باندې کاميابېدى شي:

(۱): خپل ځان د نالايقو افعالو څخه د پاکولو په لورې، د ﴿مَّوۡعِظَةٞ﴾ په لفظ کې اشاره ده.

(۲): خپل باطن د فاسده وو عقائدو او رديئه وو ملکاتو څخه تش کول، له ﴿وَشِفَآءٞ لِّمَا فِي ٱلصُّدُورِ﴾ څخه مفهومېږي.

(۳): خپل نفس په حقه وو عقائدو او فاضله وو اخلاقو سره ښايسته کول، چې د هغه لپاره د ﴿وَهُدٗى﴾ لفظ زيات مناسب دى.

(۴): د ظاهرو او باطنو د سازولو څخه وروسته الله تعالى جل جلاله د رحمت انوار پر نفس فيض کېدل، چې د ﴿وَرَحۡمَةٞ﴾ د لفظ مدلول دى.

قُلۡ بِفَضۡلِ ٱللَّهِ وَبِرَحۡمَتِهِۦ فَبِذَٰلِكَ فَلۡيَفۡرَحُواْ هُوَ خَيۡرٞ مِّمَّا يَجۡمَعُونَ ۝٥٨

ووايه (اى محمده ! مؤمنانو ته) په فضل د الله سره او په رحمت د الله سره؛ نو په همدغه (فضل او رحمت) دې خوشاله شي مؤمنان، (ځکه چې) دغه (فضل او رحمت) ډېر غوره دى له هغو مالونو چې جمع کوي (يې) دوى.

تفسير: يعنې ووايه اى محمده ! مؤمنانو ته چې خوشاله اوسئ په هغه فضل د الله تعالى سره چې په تاسې دى، چې هغه قرآنکريم يا خلود دى، يا لقاء او رضاء د الله تعالى ده، او په رحمت (او مهرباني) د الله تعالى سره چې پر تاسې دى، او هغه رحمت محمد رسول الله يا توفيق يا عصمت يا نجات دى، پس ښايي په دې رالېږلې شويو دې خوشاله شي دوى، ځکه چې دنيوي مال او متاع لره هيڅ بقاء او وفاء نشته.

قُلْ أَرَءَيْتُم مَّآ أَنزَلَ ٱللَّهُ لَكُم مِّن رِّزْقٍ فَجَعَلْتُم مِّنْهُ حَرَامًا وَحَلَٰلًا قُلْ ءَآللَّهُ أَذِنَ لَكُمْ أَمْ عَلَى ٱللَّهِ تَفْتَرُونَ ﴿۵۹﴾

ووايه آيا وينئ تاسې (يعني خبر راكړئ ماته د) هغه څيز چې نازل كړى دى الله تاسو ته له رزق څخه، نو ګرځولى دى تاسې له دغه رزق څخه (ځيني) حرام او (ځيني) حلال، ووايه (اى محمده ! دوى ته): آيا الله اذن كړى دى تاسې ته (په دغه تحليل او تحريم كې، نه) بلكه په الله پورې دروغ تړئ تاسې (له ځانه).

تفسير: يعني پاک قرآن چې د نصيحت، شفاء هدايت او رحمت په صورت رانازل شوى دى، همغه د استناد او تمسّک كولو وړ او لايق دى، د الله تعالى د احكامو معرفت او د حلالو او حرامو تميز په همدغه سره كېدى شي، دغه بابيزه (خوشې) خبرې او واهيات دي، چې الله تعالى ستاسې د انتفاع لپاره هر قسم روزي پيدا كړې ده، بيا تاسې تش پخپلو آراوو او أهواوو په هغو كې يو شى حلال او بل شى حرام دروئ، آيا تاسې د دې خبرې څه حق لرئ چې پخپل سر او له خپله ځانه د تحليلولو او تحريمولو په نسبت فيصلې كوئ؟ آيا تاسې د داسې خبرو كولو جرأت كولى شئ؛ چې الله تعالى داسې حكم مونږ ته راكړى دى؟ يا همداسې له خپله ځانه پر الله تعالى دروغ تړئ؟ په وروستني آيت كې يې په صاف ډول سره اشاره فرمايلې ده، چې دغه پرته له افتراء على الله بل هيڅ شى نه ده.

تنبيه: د هغو شيانو مفصله تذكره چې دوى هغه په خپل سر حلال او حرام درولي وو؛ د «المائدې» او د «الأنعام» په سورتونو كې تېره شوې ده.

وَمَا ظَنُّ ٱلَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى ٱللَّهِ ٱلْكَذِبَ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ إِنَّ ٱللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى ٱلنَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴿۶۰﴾

او څه شى دى ګمان د هغو كسانو چې له ځانه تړي پر الله باندې دروغ په ورځ د قيامت كې (چې څه به ورسره وكړي الله)؟، بېشكه الله خامخا څښتن (خاوند) د فضل دى پر خلقو، وليكن اكثره خلق نه وباسي شكر (په دغو نعماوو).

تفسير: يعني دا خلق د قيامت په نسبت څه خيال كوي؟ چې له دوى سره به څه قسم معامله كيږي، په سختۍ به ونيول شي؟ كه ورو به خوشې كړل شي؟ عذاب او ربړ (تكليف) به وګالي (برداشت كړي)؟ كه نه؟ په څه څه خيالاتو كې ډوب تللي دي؟، ښايي چې دوى دغه خبره ښه په ياد ولري، هر هغه سزا چې دوى ته وركوله كيږي؛ هغه خامخا دوى ته رسېدونكې ده، او له سره هغه بېرته كېدونكې نه ده.

الله تعالى په خپل فضل سره خلقو ته په دنيا كې ډېر مهلت وركوي، او له ډېرو تقصيراتو څخه يې تېرېږي، ليكن ډېر خلق د الله تعالى د دغه تلطيف په مقابل كې د شكر ايستلو او متنبه كېدلو په ځاى لا زيات زړور او بې خوفه كيږي، بالآخر دوى بيخي د سزا وركولو وړ او مستحق ګرځي.

وَمَا تَكُونُ فِى شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا۟ مِنْهُ مِن قُرْءَانٍ وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ وَمَا يَعْزُبُ عَن رَّبِّكَ مِن مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِى ٱلسَّمَآءِ وَلَآ أَصْغَرَ مِن ذَٰلِكَ وَلَآ أَكْبَرَ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مُّبِينٍ ﴿۶۱﴾

او نه يې ته (مشغول) په كوم كار كې (له خپلو كارونو) او نه لولې ته (هيڅ آيت، سورت) له دې نه (يعني) له قرآنه، او نه كوئ (اى انسانانو كوم كار) له كارونو څخه مګر اوسو مونږ پر تاسې

شاهدان كله چې مصروف (بوخت) اوسېږئ تاسي په هغه كې، او نه غائب كيږي له ربه ستا په اندازه د يوې ذرې (واړه ميږي يا پوټې د ګرد نه) په ځمكه كې، او نه په آسمانونو كې، او نشته ډېره وړوكې له دغې ذرې څخه، او نه ډېر غټ (له دې نه) مګر (دا ټول ليكلي پراته دي) په كتاب واضح (ښكاره په لوح محفوظ) كې.

تفسير: يعني د پاك قرآن په وسيله هغه جهاد چې دوى يې كوي؛ هغه ټول د الله تعالى په حضور كې دى، او خلق هغه ښې يا بدې معاملې چې كوي؛ هغه هم ټولې د الله تعالى په حضور كې ظاهرې پرتې دي، هر كله چې كوم مخلوق په كوم كار كې لاس پورې كوي، او په هغه كې مشغول او لګيا كيږي، اګر كه د دوى په فكر او خيال كې د پاك الله فكر او تصور هم تېر نشي؛ مګر الله تعالى يې له ابتداء څخه تر انتهاء ګوري، (فان لم تكن تراه فانّه يراك)، په ځمكه او آسمان هر چېرې چې د يو ذرې په اندازه يا له هغه څخه وړوكى يا لوى كوم شى هم وي؛ هغه ټول د الله تعالى په علم محيط كې شته، او له سره ترې نه غائبيږي، بلكه د الله تعالى د علمه راښكته هم د ټول (ما كان و ما يكون) حال په كتاب مبين يعني لوح محفوظ كې ثبت دى، چې هغه ته د تدبير په عالم كې ښايي د الله تعالى د علم صفحه وويلى شي.

أَلَآ إِنَّ أَوۡلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوۡفٌ عَلَيۡهِمۡ وَلَا هُمۡ يَحۡزَنُونَ ۝٦٢

واورئ خبردار شئ ! چې بېشكه دوستان د الله نشته هيڅ قسم وېره په دوى (له كوم مكروه) او نه به دوى خفه كيږي (هيچېرې له فوت د كوم مأمول نه).

تفسير: ابن كثير «رحمه الله» د حديثيه وو رواياتو په بنا دغه مطلب بيان كړى دى چې: «اولياء الله (د الله دوستانو) ته به په آخرت كې د محشر د اهوالو او وېرو څخه هيڅ خوف او وېره نه وي، او نه د دنيا د پرېښودلو څخه دوى خفه كيږي»، ځيني مفسرينو دغه آيت عام ابېني دى: يعني په هغو به د اندېښنې او د پرېشانۍ او د حوادثو د وقوع خوف نه په دنيا كې او نه په آخرت كې وي، او نه د كوم مطلوب فوتېدلو څخه به مغموم اومتأثر كيږي.

ګواكې د خوفه د الله خوف يا له غمه د آخرت د غم نفي مراده نه ده، بلكه په دنيا كې د دنيوي خوف او غم نفي مراده ده، چې د هغې احتمال د أعداوو او د نورو په مخالفت باندې كېدى شي، چې هغه به كاملينو مؤمنينو ته له سره نه پېښيږي، او دوى به هر وخت په پاك الله اعتماد او اطمينان لري، او د ټولو تكوينيه وو واقعاتو په نسبت داسې اعتقاد لري، چې هغه خامخا په يو حكمت او مصلحت مبني وي، نو دغه اعتماد او اعتقاد له استحضاره دوى ته خوف او غم او هيڅ تكليف نه رسوي.

ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَكَانُواْ يَتَّقُونَ ۝٦٣

(دغه دوستان) هغه كسان دي چې ايمان لري او وي دوى چې ځان ساتي (له معاصيو او وېريږي له الله نه).

تفسير: دا د «أولياء الله» تعريف فرمايي، يعني متّقي مؤمن د الله تعالى ولي دى، پخوا له دې نه په څو ځايونو كې معلوم شوي دي، چې د ايمان او تقوى ډېر مدارج دي، نو د ايمان او تقوى هره درجه چې په هر چا كې موجوده وي؛ په هغې درجې به د ولايت يوه برخه ورثابتيږي، مثلا لس شل او سل روپۍ هم مال، او پنځه سوه او زر، پنځوس زره، يو لك، يو مليون هم مال دى، ليكن په عام عُرف كې د لس او شل او سل روپۍ لرونكي مالك ته شتمن او مالدار نه ويل كيږي، تر څو چې «معتدّ به» د مال او دولت مقدار د چا سره نه وي، همداسې وپوهېږئ چې ايمان او تقوى هم په هره مرتبه كې چې وي؛ هغه د ولايت يو شُعبه ده، او په دې حيثيت ټولو مؤمنانو ته في الجمله ولي ويل كېدى شي، ليكن په عُرف كې ولي هغه ته ويلى شي، چې په كې د ايمان او تقوى يوه خاصه درجه وموندلى شي.

لَهُمُ الْبُشْرٰى فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ ۚ لَا تَبْدِيْلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۶۴﴾

دوی ته زیری دی په دغه ژوندون لږ خسیس کې او په آخرت کې، نشته هیڅ بدلول د کلماتو د الله (تعالی) ته، دغه (زیری د دواړو جهانو) هم دغه دی بری ډیر لوی.

تفسیر: اولیاوو ته په دنیا کې څو ډوله بشارات دي، مثلا حق تعالی هغو ته د انبیاوو علیهم السلام په ژبه د ﴿وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ﴾ او نورو زیري ورکړي دي، یا به پرښتې د موت په قریبېدلو هغو ته وایي: ﴿وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ﴾ (۲۴ جزء د حم السجده سورت (۳۰) آیت (۴) رکوع).

یا به ډېر رښتین او مبارک خوبونه ویني، یا د هغو په نسبت د الله تعالی نور بندګان ښه خوبونه ورته ویني، چې د صحیح حدیث سره موافق د نبوت د شپږ څلویښتو اجزاوو څخه یو جزء دی، یا د دوی په معاملو کې د الله تعالی له لوري به یو خاص قسم تایید او امداد کیږي، یا په خواصو کې او کله له خواصو څنې تجاوز کوي په عوامو کې هم ده ته مقبولیت حاصلیږي، او خلق د ده مدح او ثناء او د خیر ذکر او ستاینه کوي، دغه ټول شیان تر دنیوي بشاراتو لاندې درجه په درجه راتلی شي، مګر په اکثرو روایاتو کې د ﴿لَهُمُ الْبُشْرٰى فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا﴾ تفسیر په صالحه وو رؤیاوو سره کړی شوی دی، والله أعلم.

پاتې شول اخروي بشارات هغه پخپله په پاک قرآن کې منصوص دي ﴿بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ﴾ او په حدیث کې هم دغه تفسیر منقول دی.

وَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ ۘ اِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ۚ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۶۵﴾

او نه دې خفه کوي تا (ای محمده !) خبرې د دوی (چې الله نه مني او ستا تکذیب کوي او ډاروي دې) بېشکه چې زور خاص الله لره دی ټول، هم دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه خبردار (په ټولو احوالو).

تفسیر: په دې آیت کې رسول الله ته تسلي ورکوي؛ چې تاسې د احمقانو او شریرانو له خبرو څخه مه خفه کېږئ ! ټول زور او غلبه د الله تعالی په لاس کې ده.

اَلَاۤ اِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ ۗ وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُرَكَآءَ ۗ
اِنْ يَّتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۶۶﴾

واورئ خبردار شئ ! چې بېشکه خاص الله لره دي هر هغه څوک چې په آسمانونو کې دي (لکه پرښتې) او هغه څوک چې په ځمکه کې دي (لکه انسانان، پیریان سره له آسمانونو او ځمکې ملکاً خلقاً او عبیداً)، او نه کوي متابعت هغه کسان چې بولي (عبادت کوي) دوی غیر د الله د شریکانو (چې په واقع کې شریکان نه دي له الله سره)، متابعت نه کوي دوی د (هیڅ شي) مګر د ګمان (خپل چې دا بُتان او معبودان شریکان دي د الله سره)، او نه دي دوی مګر دروغ وایي (اټکلونه چلوي په دې نسبت د شرک کې).

تفسیر: یعنې په ګردو آسمانونو او ځمکو کې د واحد احد الله سلطنت دی، ګرد انس او جن او ملک د الله تعالی مملوک او مخلوق دي، د مشرکانو دغه غیر الله بلل او دوی الله تعالی سره حصه دار ګرځول؛ یوائې په توره تیاره کې غشي وهل، او واهي، تباهي خیالات دي، د دوی په لاسونو کې نه کوم حقیقت شته، او نه څه حجّت او برهان، تش د اوهامو او ظنونو په تیارو کې خپل سرونه او پښې ژوبلوي.

هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿۶۷﴾

الله همغه ذات دی چې ګرځولې يې ده تاسې ته شپه (تياره) لپاره د دې چې آرام شئ تاسې په دې کې، او (ګرځولې يې ده) ورځ ښوونکې (روښانه)، بېشکه په دغه (ظلمت او نور) کې خامخا دي ډېر دلايل (د قدرت او وحدانيت) دي لپاره د هغه قوم چې اوري دغه قرآن (په غوږونو د زړه).

تفسير: د شپې او د ورځې او د نور او ظلمت پيدا کوونکی همغه يو الله دی، خير او شر او د ټولو متقابلو اشياوو خالق هم دی دی، په دغه سره د مجوسو دغه عقيده ترديد شوه، او په دې لوري هم يوه لطيفه اشاره وشوه، همغسې چې د شپې له تيارو څخه وروسته پاک الله روښانه ورځ راولي، او د لمر په رڼا کې ټول هغه شيان صاف په نظر راځي چې د شپې تياره کې نه ښکاريده؛ همداسې د مشرکينو د اوهامو او د ظُنونو د پردې لرې کېدلو څخه وروسته د قرآنکريم د لمر رڼا وځليږي، چې خلقو ته د وصول الى الله پوره سمه لاره ښوونکې دی.

قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ الْغَنِيُّ ۖ لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ إِنْ عِندَكُم مِّن سُلْطَانٍ بِهَٰذَا ۚ أَتَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿۶۸﴾

وايي کفار نيولی دی الله ولد (ځوی لور، نو فرمايي الله په رد د دوی کې) پاک دی الله، هم دی غني (بې پروا دی)، خاص ده لره دي هر هغه څه چې په آسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکې کې دي، نشته تاسې څخه هيڅ برهان حجّت سند په دې (چې الله تعالى ولد نيولی دی)، آيا وايئ تاسې پر الله هغه خبرې چې نه پوهېږئ تاسې (پرې).

تفسير: په دغه کې د عيسايانو د شرک ترديد دی، چې مسيح عليه السلام يې د الله تعالى ځوی ټاکلی (مقرر کړی) وو، دغه خبره د پوهېدلو وړ (لايق) ده، که دوی په واقعي ډول «مسيح» (معاذ الله) صلبي ځوی وګڼي، نو له دې نه لويه ګستاخي او سپين سترګي او کفر به څه وي؟ الله قدّوس بالبداهه له ښځې او اولاد څخه پاک او منزّه دی، که له ځوی څخه مراد متبني وي، نو پاک الله دغه ته څه ضرورت لري چې يو مخلوق خپل متبنّی وګرځوي؟ آيا (معاذ الله) له ده سره د اولاد حسرت او د ځوی د نشتوالي څه غم وو؟ يا دغه فکر ورسره وو چې وروسته له دې نه (معاذ الله) د ده مال او دولت وارث او د ده د نامه روښانه ساتونکی به څوک اوسي؟ يا دا چې د زړورتوب او حرج په وقت ورته تکيه او د مرستې وسيله وي، العياذ بالله، دی خو له دغو ټولو شيانو څخه بې نيازه او بې پروا دی، او نور ټول خلق په هر وخت او هر ځای کې ده ته محتاج دي، دی به ځوی، لمسی، تبنّي (ځوی نيوني) او نورو ته څرنګه احتياج او اړتيا (مجبوري) ولري، ګرد شيان د الله تعالى مخلوق او مملوک دي، نو بيا د مالک او مملوک او خالق او مخلوق په منځ کې د داسې نسبي علائقو ګنجايش او ځايېدل له کومه کيږي؟ دا لويه سخته خبره ده؛ چې د الله تعالى په نسبت محض له جهالته داسې دروغ او بې سنده خبرې وويلې شي.

قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿۶۹﴾ مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿۷۰﴾

ووايه (ای محمده! دوی ته) بېشکه هغه کسان چې له خپله ځانه تړي پر الله دروغ (په نسبت د ولد او شريک سره) خلاص به نشي (له عذابه او په مراد به ونه رسيږي). نفع اخيستل دي په دنيا کې

بيا مونږ ته راتله د دوی دي (پس له مرګه)؛ بيا به وروڅکوو مونږ دوی ته عذاب سخت په سبب د دې چې وو دوی چې كافران كېدل (په الله او په رسول الله).

تفسير: يعني پر الله دروغ تړونكي اګر كه د ډېر دنيوي قوت او قدرت خاوندان او په خپلو اسبابو، سامانونو او وسائلو مغرور هم وي؛ ليكن ده ته حقيقي نيكي او برى له سره په برخه كېدى نشي، البته د لږو ورځو له مخې به په دنيا كې مزې كوي، او بالآخر يې د پاک الله په لوري رجوع ده، چې هلته به د خپلو جرائمو په بدل كې د نهايت سخت عذاب خوند وڅكي.

وَاتۡلُ عَلَيۡهِمۡ نَبَاَ نُوۡحٍ ۘ اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖ يٰقَوۡمِ اِنۡ كَانَ كَبُرَ عَلَيۡكُمۡ مَّقَامِىۡ وَتَذۡكِيۡرِىۡ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَعَلَى اللّٰهِ تَوَكَّلۡتُ فَاَجۡمِعُوۡۤا اَمۡرَكُمۡ وَشُرَكَآءَكُمۡ ثُمَّ لَا يَكُنۡ اَمۡرُكُمۡ عَلَيۡكُمۡ غُمَّةً ثُمَّ اقۡضُوۡۤا اِلَىَّ وَلَا تُنۡظِرُوۡنِ ﴿٧١﴾

او ولوله (اى محمده !) پر دوى حال د نوح كله چې وويل (نوح) قوم خپل ته چې اى قومه ځما ! كه چېرې وي سخت پر تاسې اوسېدل ځما (ډېر وخت په تاسې كې)، او پند دركول ځما (تاسې ته) په آيتونو د الله؛ نو خاص په الله باندې توكل كړى دى ما، نو راغونډ (او كلک) كړئ تاسې كار خپل او (راټول كړئ) شريكان خپل، بيا دې نه وي كار ستاسې په تاسې باندې پټ (يعني ټول ښكاره راپسې ملا وتړئ)، بيا راورسوئ ماته هر قسم ضرر، او مهلت مه راكوئ ماته (هيڅ قدر څو خلاص شي ځما دغه اقامت او ستاسې دغه محنت).

تفسير: يعني اى محمده ! اهل د مكې معظمې ته د نوح عليه السلام او د ده د قوم حال واوروه ! څو ترې عبرت حاصل كړي، كه دوى د خاتم الأنبياء صلى الله عليه وسلم پر تكذيب او عداوت هم داسې ملا تړلې وي، او له خپلو شركياتو څخې لاس نه اخلي؛ نو د دوې انجام به هم همغسې كېدى شي، چې د نوح عليه السلام د تكذيب كوونكو وشو، او هم د دې واقعې له بيانولو څخه يوه موخه نبي عليه السلام ته تسلي وركول دي، چې تاسې د خلقو د دښمنۍ او شرارت څخه دومره زيات خفه اومه متأثر كېږئ ! ځكه چې هر نبي ته داسې حوادث ور د مخه شوي او ټولو د همدې قسمو حالاتو مقابله فرمايلې ده، مګر په آخر كې فقط حق غالب شوى دى، او د حق او صداقت دښمنان تباه او برباد شوي دي.

﴿اِذۡ قَالَ لِقَوۡمِهٖ﴾ الآيه ـ يعني ستاسې د خوښې او خفګان او د موافقت او مخالفت د يوې ذرې په اندازه هم زه پروا نه لرم، د نورو انبياوو عليهم السلام په شان ځما هيله (اميد) او اسره هم صرف په الله واحد احد صمد ده، كه تاسې ځما په پوهنه او پند نه پوهېږئ، يا يې نه منئ؛ نو واک (اختيار) لرئ، زه خو د خپل منصبي فرض په ادا كولو كې هيڅ قصور نشم كولى، كه تاسې ځما دغه وضعيت بد منئ، او دښمني راسره كوئ، او نقصان رارسوئ؛ نو دغه شيان قطعاً ځما پر دغو ارادو څه اثر نشي غورځولى، هر هغه شى چې ستاسې په امكان كې شته؛ په ډېر شوق او مينه سره يې پر ما اجراء كړئ، ځما پر خلاف جركې او مشورې وكړئ ! او كه كوم پوخ تجويز جوړ كړئ، يا كومه خبره غوټه كړئ، او د خپل كار ملګري بلكه فرضي معبودان مو هم راټول كړئ !، او ټول سره لاس او فكر يو كړئ !، او پر يوه غير مشكوک او غير مشتبه رايې قائم شئ !، بيا په خپلو متفقه وو طاقتونو سره هغه راجاري كړئ ! او د يوې شېبې مهلت راته مه راكوئ !؛ نو بيا به ګورئ چې ځما د نبوّت د استقامت او د توكّل د غره په مقابل كې د ټولې دنيا قوتونه او تدبيرونه څرنګه بېكاره او لتاړه او څنګه يې بخر كي په هوا الوځي؟.

فَاِنۡ تَوَلَّيۡتُمۡ فَمَا سَاَلۡتُكُمۡ مِّنۡ اَجۡرٍ ؕ اِنۡ اَجۡرِىَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ ۙ وَاُمِرۡتُ اَنۡ اَكُوۡنَ مِنَ الۡمُسۡلِمِيۡنَ ﴿٧٢﴾

نو كه ګرځېدئ تاسې (له پنده او ويې نه منئ) پس نه ده غوښتې ما له تاسو څخه هيڅ اجر (مزدوري)، نه دى اجر ځما (په دې چې بولم تاسو ايمان ته) مګر پر الله دى، او امر (حكم) شوى دى ماته په دې چې اوسم زه له مسلمانانو (راسخو غاړه اېښودونكو څخه الله ته).

تفسیر: یعنې ستاسې په مقابل کې نه د جاني او بدني تکالیفو څخه ویرېږم، او نه د مالي نقصان څه فکر او اندېښنه راسره شته، زه د تبلیغ او د دعوت په خدمت څه معاوضه هم له تاسې څخه نه غواړم چې دغه اندېښنه راته پیدا شي؛ چې ستاسې په خفګان به ځما تنخوا بنده شي، یا کم له کمه تاسې ته د داسې وینا موقع په لاس درشي؛ چې ځما ټول جد او جهد د مال له حرصه او د پیسو په طمع دی، ځما اجرت او مزدوري د هغه لوی ذات په ذمه ده، چې زه یې کار کوم.

فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَمَن مَّعَهُ فِي الْفُلْكِ وَجَعَلْنَاهُمْ خَلَائِفَ وَأَغْرَقْنَا الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنذَرِينَ ﴿٧٣﴾

نو نسبت د دروغو وکړ دوی نوح ته، پس نجات ورکړ مونږ دغه (نوح) ته او هغه چا ته چې وو له ده سره په بېړۍ کې (له غرقه)، او وګرځول مونږ دوی خلیفګان، او غرق کړل مونږ (په طوفان کې) هغه کسان چې تکذیب یې کړی وو د آیتونو ځمونږ، نو وګوره چې څرنګه شوه آخره خاتمه د وېرولیو شویو (یعنې هلاک شول).

تفسیر: یعنې له هر چا سره چې د عبرت سترګې وي؛ هغه دې وګوري چې د مکذبینو انجام څرنګه شوی وو؟ دغه خلقو ته په سلهاوو کلونو نوح علیه السلام پند ورکړ، او نصیحت یې وکړ، او له نفعې او ضرر څخه یې خبردار کړل، کله چې هیڅ یوه خبره یې مؤثره ونه لوېده او قبوله نشوه، بلکه بالعکس د دوی ذاتي عناد او فرار لا ورپسې زیات شو؛ نو دلته د پاک الله له لوري د اوبو سخت طوفان (څپان) ورنازل شو، او په هغه کې ټول مکذبین سره ډوب شول، یوائې نوح علیه السلام سره له نورو څو تنو (چې پر بېړۍ سواره وو)؛ محفوظ پاتې شول، او د انسانانو وروستنی نسل له همدوی څخه پاتې شو، او د ډوب شویو خلقو په ځای کې هم دغه د بېړۍ سواره مسلمانان ودان شول، د نوح علیه السلام لږ څه قصه د «الأعراف» په سورت کې هم تېره شوې ده.

ثُمَّ بَعَثْنَا مِن بَعْدِهِ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَاءُوهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا بِهِ مِن قَبْلُ ۚ كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِ الْمُعْتَدِينَ ﴿٧٤﴾

بیا لیږلي وو مونږ پس له نوح نور رسولان قوم د هغو ته (لکه هود، صالح، ابراهیم، لوط، شُعیب)، نو راوړي وو دغو (رسولانو) هغوی ته دلائل ښکاره، پس (مستعد) نه وو دوی (دې ته) چې ایمان یې راوړی وی په هغو (دینیه وو اصولو) چې تکذیب یې کړی وو د هغو (اصولو) پخوا (له بعثت د رسولانو)، همداسې (لکه چې مهر مو لګولی وو په زړونو د دوی) مهر لګوو مونږ په زړونو د تېرېدونکو (له شرعي حدودو).

تفسیر: یعنې د نوح علیه السلام څخه وروسته هود، صالح، لوط، ابراهیم، شعیب او نور انبیاء علیهم السلام یې د خپلو اقوامو په لوري له ښکاره وو نښو او دلائلو سره لیږلي وو، لیکن د هغه جهالت او کفر په حالت کې چې دغه خلق د خپلو انبیاوو د بعثت څخه پخوا وو، او د هغو شیانو په سبب چې پخوا له دې نه یې پرله پسې د انبیاوو تکذیب کړی وو؛ بیا یې دا توفیق ونه موند چې د نورو انبیاوو چې د تشریف راوړلو او د دوی د پوهولو څخه وروسته پر حقائقو وپوهېږي او اسلام ومني، بلکه د هغو صحیحه وو اصولو تکذیب چې پخوا له دې نه قوم د نوح کړی وو؛ دوی ټولو هم د هغو د منلو څخه انکار وکړ، او همغه یوه «نـه» چې یو ځلې د ړومبنیو د خولې څخه وتلې وه؛ ممکن نه وو چې بیا د نورو وروستنیو له خولو په «هـو !» سره بدله شي، دوی هم په همغې بې ایمانۍ او تکذیب الحق تر آخره پورې کلک ولاړ وو.

ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُّوسَىٰ وَهَٰرُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيْهِ بِـَٔايَٰتِنَا فَٱسْتَكْبَرُوا۟ وَكَانُوا۟ قَوْمًا مُّجْرِمِينَ ﴿٧٥﴾

بیا ولېږل مونږ وروسته له دغو (رسولانو) څخه موسی او هارون (دواړه ورونه) طرف د فرعون (د مصر) او سردارانو د قوم د ده ته په ښکاره معجزو څمونږ؛ نو تکبر وکړ دوی، او وو دوی قوم مجرمان (کافران زړور په ګناهونو).

فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوٓا۟ إِنَّ هَٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٧٦﴾

نو کله چې راغی دوی ته حق (رښتیا خبره) له نزده څمونږ؛ نو وویل دوی: بېشکه دا خامخا سحر (کوډې) دی ښکاره.

تفسیر: یعني د «عصا» او د «ید بیضا» (د امسا او د روښانه لاس) او د نورو معجزو د لیدلو او د موسی علیه السلام زښته زیات تاثیردارو خبرو د اورېدلو څخه یې وویل چې: «دغه ټول امور ښکاره جادو دی» ځکه چې د ده په خیال کې د ګردو فوق العاده شیانو آخري درجه هم دغه جادو کېدی شي.

قَالَ مُوسَىٰٓ أَتَقُولُونَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ۖ أَسِحْرٌ هَٰذَا وَلَا يُفْلِحُ ٱلسَّٰحِرُونَ ﴿٧٧﴾

وویل موسی (دغو قاتلانو ته) آیا وایئ تاسې دغه حق (رښتیني معجزې) ته کله چې راغله تاسې ته (چې معجزه نه ده، سحر دی): آیا سحر دی دا (بلکه نه دی)، حال دا چې نه مومي بری ساحران (له عذاب د نیران).

تفسیر: یعني حق ته جادو وایئ، آیا جادو داسې کېدی شي؟ او آیا جادګر، کوډګر څرنګه د نبوت دعوی کولی شي؟ او د حق او باطل په کشمکش کې بریالی (کامیاب) کېدی شي؟ د سحر او معجزې په منځ کې فرق او توپیر نه کول، د دوی د لنډو پوهېدلو کار دی، چې د طلا او سرو زرو او ژېړو په منځ کې فرق نشي کولی، د نبي روښانه مخ، سوچه اخلاق، د تقوی رڼا، له شوکته اوعظمته ډکو احوالو کې داسې ښکاره ګواهي موجوده ده، چې کوډګري او شعوذه بازي له سره له دوی سره هیڅ یو نسبت نه لري، نو بیا نبي الله ته «ساحر» ویل په کومې اندازې بېحیایي او لیونتوب دی؟.

قَالُوٓا۟ أَجِئْتَنَا لِتَلْفِتَنَا عَمَّا وَجَدْنَا عَلَيْهِ ءَابَآءَنَا وَتَكُونَ لَكُمَا ٱلْكِبْرِيَآءُ فِى ٱلْأَرْضِ وَمَا نَحْنُ لَكُمَا بِمُؤْمِنِينَ ﴿٧٨﴾

وویل فرعونیانو (موسی ته) آیا راغلی یې ته مونږ ته لپاره د دې چې واړوې مونږ له هغه کاره چې موندلي دي مونږ پرې پلرونه خپل، او چې شي تاسې دواړو ته غلبه (سلطنت) په ځمکه (د مصر) کې، او نه یو مونږ ستاسې دواړو (په نبوت) باور کوونکي.

تفسیر: یعني معاذ الله ته د دنیا حریص او بد نیت یې، یو سیاسي تحریک په مذهبي رنګ سره وړاندې کوې، ستا مقصد او غرض همداسې معلومېږي، چې له مذهبي حیثیته یو لوی انقلاب جوړ کړې، او په دغه ملک کې خپله سرداري او حکومت ټینګ کړې، او د دې ځای پخواني سرداران (قبطیان) برطرف کړې، نو په یاد یې ولره ! چې ستا دغه غوښتنه پوره کېدونکې نه ده، مونږ له سره ستا خبره نه منو، او نه دې له سره مشرتیا تسلیموو.

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ٱئْتُونِى بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴿٧٩﴾

او وویل فرعون (مقربانو خپلو ته چې): راولئ تاسې ماته هر هغه ساحر چې ښه (پوهه او) ماهر وي.

تفسير: دغه د موسی علیه السلام د تقریر جواب وو، یعني پاتې شوه د سحر او د معجزې جګړه د هغې تصفیه هم عملاً کوو، چې د دې ملك ډېر لوی ماهر کوډګران راټول کړل شي، بیا دغه کوډګران ستا د دغو معجزاتو په مقابل کې خپلې ننداري دربنکاره کړي؛ نو ټول به سره ووینې چې تاسې نبیان یئ؟ که (معاذ الله) کوډګران؟، نو ځکه د فرعون په ټوله پاچاهۍ کې سرې خواره شول، او هر لوري ته نو محصلان لاړل، چې ښه پوهان، مشاقان او ماهران کوډګران چې هر چېرې وموندل شي؛ ژر دې راحاضر کړل شي !، د دې مفصله واقعه د «الأعراف» په سورت کې تېره شوې ده، هلته دې وکتلی شي.

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلْقُوا۟ مَآ أَنتُم مُّلْقُونَ ﴿٨٠﴾

نو کله چې راغلل ساحران (د معارضې میدان ته)؛ وویل دوی ته موسی چې: وغورځوئ هغه څه چې تاسو (یې) غورځوونکي یئ.

تفسیر: په بل ځای کې مذکور دي، چې کوډګرانو له موسی علیه السلام څخه پوښتنه کړې وه، چې ته دې خپله نندارہ پخوا رانښیې؟ که یې مونږ اول دروښیو؟ د دوی په ځواب کې موسی علیه السلام وفرمایل: «د هر هغه شي ښوونه مو چې په زړه کې وي؛ ړومبی تاسې هغه راوښیئ»، ځکه چې د باطلو د پوره زور ښوولو څخه وروسته د حقو راتلل او د باطلو لاندې غورځول، او مغلوب او مقهور او ویجاړ ځرګندول یې لا زیات مؤثر او د حق غلبه لا ښه واضحه کوي.

فَلَمَّآ أَلْقَوْا۟ قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُم بِهِ ٱلسِّحْرُ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ سَيُبْطِلُهُۥٓ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٨١﴾

نو کله چې وغورځول ساحرانو (پړي او همساګانې خپلې)؛ نو وویل موسی: هغه څیز چې راوړی دی تاسو هغه یواځې سحر دی (نه بل شی)، بېشکه چې الله ژر تباه کوي دغه (سحر)، بېشکه چې الله نه جوړوي کار د فساد کوونکو.

تفسیر: کوډګرانو خپل پړي او همساګانې پر ځمکه وغورځولې، او په تخیل او نظربندۍ سره یې لیدونکو ته داسې ورځرګنده (ښکاره) کړل، چې ګواکې ګرد میدان له ژوندیو مارانو، منګورانو ځنې ډك دی، نو موسی علیه السلام وویل: «جادو او کوډې همداسې دي؛ چې تاسو راوړي دي، او بل شی نه دی، بېشکه چې الله تعالی ژر تباه کوي دغه سحر، او بېشکه الله نه جوړوي کار د فساد کوونکو».

یعنې بس دی ! تاسو خپل ټول زور او قوت صرف کړ، اوس خپل ځانونه سنبال کړئ ! چې پاك الله به ستاسې دغه له خپله ځانه جوړې کړې لوبې داسې ورانې او خرابې کړي، چې بیا له سره په مقابل کې د هغه بل کوم نظیر او مثال او جوړه نشي جوړېدی، ځکه چې د پاك الله د عادت او حکمت څخه دغه خلاف دی، چې د مصلح او مفسد د مقابلې په وخت کې کله چې له هغه څخه مقصود خالص د حجّت اتمام وي؛ چې د مفسدانو او شریرانو خبرو ته څه اثر او قوت ورکړي، یا د حق کلمه مغلوبه او ښکته کړي.

وَيُحِقُّ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٨٢﴾ فَمَآ ءَامَنَ لِمُوسَىٰٓ إِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّن قَوْمِهِۦ عَلَىٰ خَوْفٍ مِّن فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِمْ أَن يَفْتِنَهُمْ ۚ وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿٨٣﴾

او (بیا ژر) رښتیا کوي الله حقه خبره (چې ځما راوړی دین دی) په کلماتو (او حکمونو) خپلو سره، او اګر که یې بد ګڼي مجرمان (کافران). نو ایمان نه وو راوړی (ړومبی) په موسی باندې مګر څو اولادو (ځلمیانو) له قومه د ده سره له وېرې له فرعونه او له مشرانو د

دوی، له دې نه چې دوی و(نه) ښویوي، او بېشکه چې دغه فرعون خامخا جابر متکبر وو په ځمکه (د مصر) کې، او بېشکه چې دی خامخا له حده تېرېدونکو څخه وو (تر دې حده پورې چې د الوهیت دعوی یې هم وکړه).

تفسیر: بني اسرائیلو د فرعونیانو له لاسه سخت مصیبتونه او تکلیفونه، ذلت او سپکتیا ګاللې (برداشت کولې)، او د همغو رومبنیو پخوا ویلو سره سم منتظر وو، چې د فرعون د مظالمو خاتمه، او د هغه د سلطنت د اساس اړولو لپاره همغه اسرائیلي نبي مبعوث شي.

موسی علیه السلام سم په همغه شانې تشریف راوړ چې عام خلق د هغه په انتظار کې وو، نو ځکه ګرد «بني اسرائیل» په قدرتي ډول سره د موسی علیه السلام بعثت یو نعمت عظمی ګاڼه، او د زړه له صدقه یې موسی رښتینی شماره، او د هغه عزت او حرمت یې په انتهایي درجه سره کاوه، مګر ډېر سرې له فرعونه او له فرعونیانو سردارانو ځنې وېرېدل، نو له همدې لامله په ابتداء کې په شرعیه وو اصولو سره یې ایمان رانه وړ، او وقت او زمان ته یې منتظر وو، چې کله او هر مهال (وخت) چې د حق غلبه وشي؛ نو ګرد به سره مسلمانېږي، د بني اسرائیلو لږ څه ځلمیانو همت وکړ، او د فرعون د خوف او وېرې سره یې د خپل اسلام اظهار او اعلان وکړ، څو شمېرلي او غوره شوي قبطیان هم چې د فرعون له قومه وو؛ په اسلام مشرف شول، په آخره کې کله چې موسی علیه السلام اثر او د حق غلغله لا پورته شوه؛ نو دلته د بني اسرائیلو ګرد هغه قومونه سره مسلمانان شول، چې نژدې په شپږو لکو بالغو نارینه وو پورې رسېدل، دلته د هغو د ابتدایي قصې بیان دی.

وَقَالَ مُوسَىٰ يَا قَوْمِ إِن كُنتُمْ آمَنتُم بِاللَّهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّسْلِمِينَ ﴿٨٤﴾

او وویل موسی (مؤمنانو د خپل قوم ته کله چې آثار د خوف ښکاره شو): ای قومه ځما ! که یئ تاسې چې ایمان مو راوړی دی پر الله (چې خیر او شر او نور هر شی د ده په قدرت کې دی)؛ نو خاص پر هم ده توکل وکړئ که یئ تاسې مسلمانان (حکم منونکي د الله).

تفسیر: یعنې د خوف او وېرې هیڅ ضرورت نشته، د یوه فرمان منونکي مؤمن کار دا دی، چې د خپل مالک پر قوت معتمد وي، هر هغه څوک چې د پاک الله پر لا محدود قدرت او رحمت متیقن وي، دی په هرې معاملې کې یقیناً په الله تعالی اعتماد او توکل کوي.

فَقَالُوا عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿٨٥﴾

نو وویل دوی: خاص پر الله توکل کړی دی مونږ، ای ربه ځمونږه ! مه ګرځوه مونږ (سبب د فتنې (ضلالت) لپاره د قوم ظالمانو !.

تفسیر: موسی علیه السلام پر نصیحت دوی د خپل اخلاص اظهار وکړ، او ویې ویل چې: بېشکه ځمونږ توکل او اعتماد خالص پر الله تعالی باندې دی، او د همغه له درباره غواړو چې مونږ د دغو ظالمانو له ظلمونو څخه خلاص کړي؛ چې زیات له دې نه مو په عذاب نه کړي، په دغه شانې چې دوی تل پر مونږ خپل زور، طاقت، قوت او ظلم وچلوي، او ځمونږ له لاسه د دوی په مقابل کې هیڅ شی نه وي پوره؛ په دغه صورت کې ځمونږ دین هم په وېره او خطره کې دی.

وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٨٦﴾

او نجات راکړه مونږ ته په (سبب د) رحمت خپل له قوم کافرانو نه.

وَاَوْحَيْنَآ اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٨٧﴾

او وحيې وکړه مونږ موسی او ورور د ده ته داسې چې: جوړ (مقرر) کړئ تاسې لپاره د قوم خپل په مصر کې کوټې (لپاره د عبادت) او وګرځوئ کوټې خپلې (مخامخ) قبلې (ته)، او سم ودروئ (ادا کوئ) تاسې لمونځ، او زيرى ورکړه (اى موسى) مؤمنانو ته (دلته په نصرت هلته په جنت).

تفسير: شاه صاحب ليکي: « کله چې د فرعون د هلاکت وقت نژدې شو؛ نو حکم وشو چې د بني اسرائيلو قوم دې له هغوى سره ګډ او شامل نشي، او په خپلو محلو کې دې بېل اوسېږي، چې وروسته له دې نه پر دوى آفتونه راتلونکي دي.

مفسرينو له ﴿اَنْ تَبَوَّاٰ لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا﴾ څخه دغه مراد آخيستى دى، چې په خپلو کورونو کې اوسېږئ ! او له دغو څخه ځينې کوټې د عبادت لپاره مخصوصې کړئ ! (او دا يې هله وفرمايل چې) فرعون ټول مسجدونه او معابد خراب کړي وو، هيڅوک به د باندې وتلى او عبادت به يې کولى نشو، نو حکم وشو؛ چې په خپلو کورونو کې دې داسې ځايونه د لمانځه لپاره تيار کړي؛ چې قبلې ته مخامخ وي، او لمونځ مه پرېږدئ ! چې د همغه په برکت سره مو نصرت په برخه کيږي.

وَقَالَ مُوْسٰى رَبَّنَآ اِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَاَهٗ زِيْنَةً وَّاَمْوَالًا فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِكَ ۚ رَبَّنَا اطْمِسْ عَلٰٓى اَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿٨٨﴾

او وويل موسى (تضرّعاً): اى ربه ځمونږ ! بېشکه تا ورکړى دى فرعون او سردارانو د ده ته زينت (رونق) او مالونه په دغه ژوندون لږ خسيس کې، اى ربه ځمونږ ! عاقبت او نتيجه يې دا شوه د دې چې ګمراه کړي دوى (خلق) له لارې ستا نه، اى ربه ځمونږ ! محوه (کړه، هلاک او مسخ) راوله پر اموالو د دوى، او سختي راوله په زړونو د دوى؛ نو ايمان نه راوړي دوى تر هغه چې ووينې دوى عذاب دردناک.

تفسير: يعني د هر قسم سامان، رونق، آسايش، او سينګار دې ورکړى دى، مثلا د صورت ښايست، سورلي، عمده پوښاک، اثاث البيت او نور، او د مال او د دولت خزانې د سرو او د سپينو زرو درنګونه (کانونه) او نور دې وربخښلي دي.

ځينو مفسرينو په ﴿لِيُضِلُّوْا﴾ کې «لام» د «عاقبت» لپاره اخيستى دى، لکه چې په ﴿فَالْتَقَطَهٗٓ اٰلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا﴾ کې «لام» د «عاقبت» لپاره دى، نو مطلب يې داسې دى چې: «دغه ساز او سامان يې ځکه ورکړى وو؛ چې په خيريه وو امورو کې يې ولګوي، او د دغو نعمتونو په لرلو خپل حقيقي منعِم په ښه شان سره وپېژني، او د الله تعالى له شکر کوونکو بندګانو ځني شي، مګر په خلاف د هغه دوى له خپلې بدبختى د الله تعالى د دغو نعمتونو سره نور خلق بې لارې او ګمراهان کړل، او په دغه لار کې په خلاص زړه او لاس داسې بې پروا لګوي؛ لکه چې يې خاص همدغه کار لپاره ورکړي وي، پر دغه تفسير هيڅ يو اشکال نه وارديږي.

کله چې موسى عليه السلام تر يوې اوږدې مودې پورې هغوى ته هر راز هدايات ورکړه، او عظيم الشاني معجزې يې وربښکاره کړې، مګر د معاندينو جحود او عناد لا پسې زياتېده، تر دې حده پورې چې د تجربې، يا د صحبت د

طول يا د الله تعالى د وحيې په وسيلې په پوره ډول ثابته شوه، چې دغه خلق له سره ايمان راوړونكي نه دي؛ نو دلته د دوى د هلاكت لپاره يې دعا وكړه، څو د دوى له پليتى څخه دنيا ژر پاكه شي، او نور د دوى له بدې خاتمې څخه د عبرت درس واخلي.

قَالَ قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا فَاسْتَقِيمَا وَلَا تَتَّبِعَآنِّ سَبِيلَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٨٩﴾

وفرمايل (الله): په تحقيق قبوله كړې شوه دعا ستاسې، نو سم ولاړ اوسئ (په تبليغ خپل)، او متابعت مه كوئ تاسې د لارې د هغو كسانو چې نه پوهيږي (په حق يا ناپوهان دي په حكمت د تاخير).

تفسير: له رواياتو څخه معلوميږي، چې موسى عليه السلام به ښېرې كولې، او هارون عليه السلام به آمين ويل، نو په دغه لحاظ سره يې ﴿دَّعْوَتُكُمَا﴾ فرمايلي دي.

يعنې خپل كار په استقلال او ثابت قدمى سره پاى (انجام) ته ورسوئ ! كه د دعا د قبولولو په آثارو كې څه ځنډ (ايسارتيا) درښكاره شي؛ نو د ناپوهانو په شان تلوار او بيړه مه كوئ ! په مقدر وخت او مقررې نېټې كې همداسې چې ته يې غواړې كېدونكي دي، مگر له وېرېدلو او وارخطا كېدلو څخه هيڅ شى په لاس نه درځي.

وَجَٰوَزْنَا بِبَنِيٓ إِسْرَٰٓءِيلَ ٱلْبَحْرَ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُۥ بَغْيًا وَعَدْوًا ۖ حَتَّىٰٓ إِذَآ أَدْرَكَهُ ٱلْغَرَقُ قَالَ ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِيٓ ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓا۟ إِسْرَٰٓءِيلَ وَأَنَا۠ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴿٩٠﴾ ءَآلْـَٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنتَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٩١﴾

او تېر كړل مونږ بني اسرائيل له بحره (د قلزم روغ رمټ) نو پسې ورسېده په دوى پسې فرعون او لښكر د ده لپاره د ظلم او جفا، تر هغه كله چې ورسېده دغه (فرعون) ته غرق (ډوب شو او وويرېد په هلاك خپل)؛ نو ويې ويل چې: ايمان راوړ ما په دې چې بېشكه نشته هيڅ معبود بر حق مگر يواځې هغه ذات چې ايمان راوړى دى پر هغه بني اسرائيلو، او زه يم له مسلمانانو (غاړه اېښودونكو حكم د الله ته، وفرمايل الله په رد د ايمان د فرعون:) آيا اوس (دې ايمان راوړ؟) حال دا چې په تحقيق نافرماني دې كوله پخوا (له دې نه د رسول څما) او وې ته له مفسدينو (فساد كوونكو) نه.

تفسير: موسى عليه السلام سره له څو لكو بني اسرائيلو له مصره ووتلو، كله چې فرعون خبر شو؛ نو يو زورور لښكر يې د هغو د تعاقب لپاره واستول، څو دوى د ده د ظلم له منگولو څخه خلاص نشي، كله چې بني اسرائيل د (قلزم د بحيرې) څنډې (خوا) ته ورسېدل؛ نو ډېر زيات وارخطا او پرېشان شول، ځكه چې وړاندې لوى بحر او تر شا يې د فرعون زورور لښكر راته، موسى عليه السلام دوى ته تسلي وركړه، او د الله تعالى په حكم يې پخپل همسا بحر وواهه، د بحر اوبه دې خوا او هغه خوا شوې، او غونډې غونډې ودرېدلې، او د ده په منځ كې دوولس وچې لارې د پاك الله په حكم جوړې شوې، بني اسرائيل ټول سره له بحره پورې وتل.

د بل لورې فرعون سره له خپلو لښكرو د «قلزم» څنډو «غاړو» ته ورسېدل، او پر دغو وچو لارو يې خپل آسونه رهي (روان) كړل، كله چې ټول فوجونه په دغو دوولسو لارو كې تلل، او بيخي د بحر منځ ته داخل شول؛ نو د بحر په اوبو حكم وشو، چې بيا سره يو ځاى شي، سمدلاسه د اوبو هغه بېل شوي طبقات سره يو ځاى شول، او دغه ټول افواج سره له خپلو تجهيزاتو د بحر په قعر (تل) كې ډوب شول، كله چې فرعون وليده چې زه هم اوس ډوبېږم، نو ډېر زيات

وويربده، او د ايمان او د اسلام لفظ يې په ژبه راوړ، چې ګوندې د بني اسرائيلو الله له ما څخې د «ايمان» د لفظ د اوربدلو په سبب د بحر موجونه لرې او روغ رمټ مې له اوبو وباسي، دلته د پاک الله داسې ارشاد صادر شو: ﴿آٰلْـٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ﴾ الآيه ـ يعنې تا په ټول عمر کې مخالفت کاوه، او له شرارت څخه دې لاس نه اخيسته، اوس چې دې عذاب په عين اليقين سره وليده؛ نو ايمان راوړې؟ د دې وقت ايمان بېکاره او يقين يې بې اعتباره دی: ﴿فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيمَانُهُمْ لَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا سُنَّتَ اللّٰهِ الَّتِي قَدْ خَلَتْ فِي عِبَادِهِ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُونَ﴾ (۲۴ جزء د المؤمن سورت (۸۵) آيت (۹) رکوع).

﴿فَالْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ اٰيَةً وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ اٰيٰتِنَا لَغٰفِلُونَ ﴿۹۲﴾﴾

نن ورځې به خلاصی درکړو تا تـه په بـدن ستا سـره (بې روحه، او وبه دې باسو له بحره لوخ لغړ) لپاره د دې چې شـې تـه لپاره د هغه چا چې وروسته له تا راځي (لوی) آيت (دليل د عبرت)، او بېشکه چې ډېر له خلقو د آيتونو (دلائلو د قدرت) څخه خامخا غافلان دي (چې توجه پرې نه کوي).

تفسير: په «موضح القرآن» کې دي: «همداسې چې د فرعون بې وقته ايمان راوړل بې فائدې وو، همغسې پاک الله د ده له مړ کېدلو څخه وروسته د هغه بدن يې له بحر څخه د باندې د شګو په سر وغورځاوه، چې بني اسرائيل يې وګوري، او شکر وباسي، او نور وروسته راتلونکي د ده له حال عبرت واخلي، که نه د هغه د مړي د نجات څه فائده متصوره وه؟ لکه چې ايمان يې بې فائدې وو؛ همغسې بې فائدې نجات يې هم په برخه شو.

د جديده وو تحقيقاتو له مخې ثابته شوې ده، چې د فرعون کالبوت تر نن ورځې پورې همغسې محفوظ پاتې دی، ليکن د قرآني الفاظو صحت د دې خبرې پر ثبوت نه دی موقوف.

﴿وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيٓ إِسْرَاءِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ فَمَا اخْتَلَفُوا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۹۳﴾﴾

او خامخا په تحقيق ځای ورکړ مونږ بني اسرائيلو ته (پس له اهلاکه د فرعونيانو) ځای د صدق (ربښتيني لايق په مصر او شام کې)، او غوره رزق روزي مو ورکړه دوی ته له طيباتو (پاکيزه ځيزونو لذتناکو)، نو اختلاف ونه کړ دوی (په دين کې) تر هغه پورې چې راغی دوی ته علم (پر احکامو د تورات)، بېشکه رب ستا حکم (فيصله) به وکړي په منځ د دوی کې په ورځ د قيامت کې په هغه څيز کې چې وو دوی چې په هغه کې به يې اختلاف کولو (له احکامو د دين څخه).

تفسير: يعنې فرعون يې هلاک او بني اسرائيلو ته يې ړومبی د مصر مملکت ورکړ، بيا لږ څه مدت وروسته (عمالقه) يې وويستل، او د شام مملکت يې هم ورکړ، دغه دواړه ملکونه ودان، زرغون او سېراب (ماړوب) دي، چې په کې ښايسته او لذيذ شيان په افراط سره پيدا کېده.

﴿فَمَا اخْتَلَفُوا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ﴾ الآيه ـ يعنې د مادي انعاماتو او اکراماتو سره په ديني او روحاني نعمتونو سره يې هم سرلوړي ورکړه، د تورات شريف علم يې ورکړ، چې په کې د دين اصول او فروع بيان شوي وو، او د پخوانيو او وروستنيو په نسبت يې اخبار درلودل (لرل)، له دغو واضحه وو حقائقو د خبرېدلو څخه وروسته دغه وړ او لايق نه وو چې دوی په داسې صافو شيانو کې اختلاف وکړي، او پخپلو منځونو کې سره مناقشې او جګړې وکړي، او د ګوند او ګوندبازۍ په نحوست (شومتيا) کې سره آخته شي.

مګر دوی سره د صحيح علم د لرلو او صادق خبر د رسېدلو سره په راز راز اختلافاتو کې مبتلا او هر ډول مناقشې يې پيدا کړې، او پرله پسې په نفاق او تفرقه اچولو کې لګيا دي، په ځينو احکامو کې يې له خپل نبي موسى عليه السلام سره هم په ژبه او سوال او جواب وکړل، لکه چې د غوا د حلالولو په واقعې کې چې مخکې تېر شو، وروسته د نورو انبياوو بالخاصه ځمونږ د خاتم النبيين سيد المرسلين صلى الله عليه وسلم د رسالت ځينې له دوی ځنو تصديق وکړ، او أکثرو يې تکذيب وکړ، حال دا چې د دوی په متعلق پر ډېرو وړاندوينو مطلع شوي وو، بلکه د محمد صلى الله عليه وسلم له بعثت څخه پخوا د نبي آخر الزمان د راتګ منتظران وو، او له مشرکانو سره به يې ويل، چې مونږ به د آخر الزمان نبي سره ملګري کيږو، او تاسې به هم سمې لارې ته راولو.

فَإِن كُنتَ فِي شَكٍّ مِّمَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ فَسْـَٔلِ ٱلَّذِينَ يَقْرَءُونَ ٱلْكِتَـٰبَ مِن قَبْلِكَ ۚ لَقَدْ جَآءَكَ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُمْتَرِينَ ﴿٩٤﴾ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَـٰتِ ٱللَّهِ فَتَكُونَ مِنَ ٱلْخَـٰسِرِينَ ﴿٩٥﴾ إِنَّ ٱلَّذِينَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٩٦﴾ وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ ءَايَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴿٩٧﴾

نو که فرضاً يې ته په شک کې له هغه (قرآن) چې نازل کړی دی مونږ تاته؛ نو پوښتنه وکړه له هغو کسانو چې لولي کتاب (تورات او انجيل) پخوا له تا نه (له اهل کتابو نه)، خامخا په تحقيق راغلی دی تاته حق له (طرفه د) رب ستا نو مه کېږه ته له سره له شک راوړونکيو څخه. او مه کېږه ته له سره له هغو کسانو چې تکذيب کوي دوی د آيتونو د الله؛ نو به شې ته له زيانکارانو. بېشکه هغه کسان چې حقه (ثابته) شوې ده (په علم الله يا لوح محفوظ کې) پر دوی کلمه (حکم د عذاب) د رب ستا؛ نو نه راوړي ايمان دوی. او اګر که راشي دوی ته دليل د وحدانيت (او د قدرت د رب العزّت) تر هغه پورې چې ووينې دوی عذاب دردناک (په نزع يا قيامت کې).

تفسير: اګر که ظاهرا دغه خطاب رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ته دی، ليکن په حقيقت کې د دوی په مخاطبه سره د هغو نورو ته اورول مقصود دي، چې د يوه امي له ژبې داسې عظيم الشان حقائق او واقعات اوروي، او حق حيران ورته پاتې کيږي، او د جهل او تعصب له سببه د هغه د واقعيت په نسبت د شک او تردد اظهار کوي، که نه ښکاره ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به پخپله پخپل راوړي کلام کې څرنګه شک او شبهه کولی شي، له دې امله رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې آيت له نازلېدو وروسته وفرمايل: «چې زه نه تپوس کوم، او نه شک»، او د هغه مقدس شي په نسبت چې ټولې دنيا ته دعوت ورکوي، او له غرونو ځنې زيات ټينګ يقين د اورېدونکو په زړونو کې پيدا کوي، دی به څرنګه هغه په خپله ژبه دروغ ګڼي؟.

څو آيته وروسته ښکاره فرمايي: ﴿قُلْ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى﴾ الآيه ـ دغه آيت صاف راښيي چې شک او شبهه کوونکي نور خلق وو، چې د هغو په مقابل کې رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپلې غير متزلزلې او کلکې قاطعې عقيدې سره داسې اعلان کوي.

فائده: له ﴿كَلِمَتُ رَبِّكَ﴾ ــ درب له کلام څخه» مراد غالباً هغه دی، چې په بل ځای کې يې فرمايلي دي: ﴿لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ ٱلْجِنَّةِ وَٱلنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾ يعنې دوزخ به له پيريانو او انسانانو ځنې ډکوم، پر هغو خلقو چې له بد بختۍ، بد استعداد، د اعمالو له شامته دغه خبره د الله تعالى په علم کې ثابته شوې ده، دلته د هغو ذکر دی.

فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ اٰمَنَتْ فَنَفَعَهَآ اِيْمَانُهَآ اِلَّا قَوْمَ يُوْنُسَ ؕ لَمَّآ اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۹۸﴾

نو ولې نه وو اهل د يوې (نافرمانې) قريې (کلي) چې ايمان يې راوړی وی (پخوا له نزوله د عذابه)، پس نفع رسولې وی ورتـه ايمان د (اهـل د) دې (قريې) مګر قوم د يونس کله چې ايمان راوړ هغو (په ليدلو د علائمو د عذاب)؛ نو دفع (پورته) کړ مونږ دوی نه عذاب او ذلت په دې ژوندون لږ خسيس کې، او فائده ورسوله مونږ دوی ته تر وقت د مرګ پورې.

تفسير: يعنې هغومره کلي چې د انبياوو د تکذيب او د خپلو شرارتونو لامله د پاک الله د عذاب مستوجب شوي دي، د هغو له منځه هيچا ته د داسې ايمان راوړلو نوبت نه دی راغلی چې دوی د الله تعالی له عذابه وژغوري (بچ کړي)، يوائې د يونس عليه السلام د قوم يو مثال شته، چې هغو په ايمان راوړلو خپلو سره خپل ځانونو ته د الله تعالی د هغه رسېدونکي عذابه ژر نجات ورکړ، چې بيخي د دوی په سر وګرځېده، نو پاک الله د ايمان راوړلو په برکت په دنيوي ژوندانه کې له دوی ځنې هغه راتلونکی عذاب ستون (واپس) کړ، او تر هغه وقته پورې چې دوی په دنيا کې اوسېدل، دوی يې د دنيوي فوائدو او برکاتو ځنې منتفع کړل.

مفسرين نقل کوي چې يونس عليه السلام په (موصل) کې د (نينوی) خلقو ته مبعوث شو، د دې ځای خلق بت پرستان وو، يونس عليه السلام متصلاً تر اووکالو پورې هغوی ته پند او نصيحتونه کول، مګر دوی له سره د ده خبرو ته غوږ نه کېښود، يوماً فيوماً د دوی انکار او تکذيب لا پسې زياتېده، آخر يونس عليه السلام په تنګ شو، نو دوی ته يې ښېرې وکړې (که له دغو چارو څخه مو لاس وانخيست؛ نو د درې ورځو په منځ کې پر تاسو باندې عذاب راتلونکی دی).

کله چې دريمه شپه راغله يونس عليه السلام په نيمه شپه کې له دغه کلي څخه ووت، د سپېده داغ په مهال (وخت) کې د عذاب آثار او علائم ورښکاره شو، په آسمان کې تکه توره وېرووونکې وريځ راوختله، تر دې چې د کورونو چتونه يې بيخي تياره شول، د دغو آثارو د ليدلو څخه کله چې د دوی يقين پر خپل هلاکت راغی؛ نو د يونس عليه السلام په لټولو پسې ولوېدل.

هر کله چې هغه يې ونه موندہ؛ نو ګرد خلق سره له ښځو، وړوکيو بلکه له خپلو څاروو او مواشيو سره د باندې ببديا ته ووتل، او په خلاص زړه او صافې عقيدې يې د پاک الله په لوري رجوع وکړه، او له ډېرې وېرې يظې وژړل، او چغې يې ووهلې، او په ډېره تضرّع او اخلاص سره يې د الله تعالی په دربار کې دعاوې کولې، له څلورو خواوو د آهاتو او ژړاوو غږونه پورته کېدل، او ګردو به سره ويل چې «آمنا بما جاء به يونس»، «ايمان مو راوړی دی پر هغه څه چې يونس عليه السلام له خپله ځانه سره راوړی دی»، حق تعالی په سبب د دغې تضرّع، ژړا، واوېلا پر دوی باندې رحم وفرمايه، او د عذاب هغه آثار يې چې ورڅرګند (ښکاره) کړي يې وو؛ بېرته لرې کړل.

وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَاٰمَنَ مَنْ فِي الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا ؕ اَفَاَنْتَ تُكْرِهُ النَّاسَ حَتّٰى يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۹۹﴾

او که اراده فرمايلې وی رب ستا (ايمان د ټولو خلقو) خامخا ايمان به راوړی وی هغو کسانو چې په ځمکه کې دي ټولو په اجتماع سره، آيا نو ته مجبوره کوې (بې له ارادې ځما) خلق تر هغه چې شي دوی (ټول) مؤمنان (يقين لرونکي) بلکه نه يې شي.

**تفسير:** يعنې تاسې داسې قدرت نه لرئ چې په زور او زياتي د چا په زړه کې ايمان واچوئ، که الله تعالى اراده فرمايلې وی؛ نو د ټولو انسانانو په زړونو کې يې ايمان اچولی شو، مګر څرنګه چې په متعددو مواضعو کې تقرير کړی شوی دی؛ کله چې داسې کول د الله تعالى د تکويني حکمت او مصلحت څخه خلاف وو؛ نو ځکه يې ونه فرمايل.

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تُؤْمِنَ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ ﴿١٠٠﴾

او نه دی (ممکن) لپاره د هيڅ نفس دا چې ايمان راوړي مګر (ممکن دی) په اذن (اراده) د الله، (او اراده کوي الله ايمان د ځينو) او آچوي پليتي په هغو کسانو چې نه چلوي عقل (او فکر په دلائلو او آيتونو د الله کې).

**تفسير:** بې د الله تعالى له مشيئت او توفيقه او تکويني حکم هيڅوک ايمان نشي راوړی، او دغه حکم او توفيق د همغو په حق کې کيږي، چې د الله تعالى د قدرت په نښو او آيتونو غور او فکر کوي، او له عقله او فهمه کار اخلي، هغه کسان چې د پوهېدلو او سنجولو (غور کولو) تکليف پر ځان نه تېروي؛ نو الله تعالى دوی همغسې د کفر او شرک په نجاست کې ډوب او ککړ پرېږدي.

قُلِ انْظُرُوا مَاذَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠١﴾

ووايه (ای محمده !دې مشرکانو ته چې) وګورئ چې څه (قسم عجيبه عجيبه دلائل د وحدانيت) دي په آسمانونو او ځمکه کې، او نه دفع کوي (عذاب) دلائل (د وحدانيت) او (اورېدل د کلام د) ويروونکو له هغه قوم څخه چې ايمان راوړونکي نه دي دوی.

**تفسير:** يعنې د غور کولو او پوهېدلو لپاره په آسمان او ځمکه کې د الله تعالى د قدرت، حکمت، توحيد، او نورو ډېرې نښې موجودې دي، بلکه هره ذره، هر بخرکی، هره پاڼه د ده پر توحيد دلالت کوي.

ليکن هغه خوک چې د کومې خبرې منونکي او تسليم کوونکی نه وي؛ نو د ده لپاره دغه ګردې نښې او دلائل بېکاره دي، او د ويروونکو انبياوو تنبيه او تخويف هم پر دوی غير مؤثر ثابتيږي.

فَهَلْ يَنْتَظِرُونَ إِلَّا مِثْلَ أَيَّامِ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ ۚ قُلْ فَانْتَظِرُوا إِنِّي مَعَكُمْ مِنَ الْمُنْتَظِرِينَ ﴿١٠٢﴾

نو آيا انتظار کوي دا (مشرکان په سبب د تکذيب ستا، بلکه انتظار نه کوي هيڅ څيز ته) مګر (انتظار کوي) په شان د هغو بدو ورځو (وقائعو) د هغو کسانو چې تېر شوي دي پخوا له دوی نه، ووايه (ای محمده !دوی ته) نو انتظار وکړئ تاسې، بېشکه زه هم له تاسې سره له انتظار کوونکو څخې يم.

ثُمَّ نُنَجِّي رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا ۚ كَذَٰلِكَ حَقًّا عَلَيْنَا نُنْجِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾

بيا نجات ورکړ مونږ رسولانو ځمونږ ته او هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی وو، همداسې (چې نجات ورکړ مونږ هغوی ته؛) ثابته ده پر مونږ (تلطفاً دا چې) خلاصوو (نور) مؤمنان (هم).

**تفسير:** يعنې همغسې چې له پخوانيو قومونو سره ځمونږ عادت جاري وو، چې مکذبين به مو هلاکول، او انبياء او مؤمنينو ته به مو نجات ورکولو؛ همداسې د موجوده وو او د مستقبلو مؤمنينو په نسبت ځمونږ وعده همدا ده، چې هغو

ته به نجات ورکوو، په آخرت کې د عذاب أليم څخه، او په دنيا کې به د کفّارو له مظالمو او سختيو څخه مأمون او مصـون وي، ولې شرط دا دی چې مؤمنين، صادق مؤمنين وي، يعنې د هغو صفاتو او خصالو او خصائصو خاوندان وي، چې په پاک قرآن او په حديث کې د مؤمنينو په نسبت بيان شوي دي.

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِن كُنتُمْ فِى شَكٍّ مِّن دِينِى فَلَآ أَعْبُدُ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ وَلَٰكِنْ أَعْبُدُ ٱللَّهَ ٱلَّذِى يَتَوَفَّىٰكُمْ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٤﴾ وَأَنْ أَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمُشْرِكِينَ ﴿١٠٥﴾ وَلَا تَدْعُ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَنفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ ۖ فَإِن فَعَلْتَ فَإِنَّكَ إِذًا مِّنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٠٦﴾

ووايه (ای محمده !) ای خلقو که يئ تاسې په شک کې له دينه ځما (چې صحيح دی که غلط) نو عبادت نه کوم زه د هغو معبودانو چې عبادت (يې) کوئ تاسې غير له الله څخه، وليکن عبادت کوم زه د الله هغه چې وفات کوي تاسې (وباسي روح ستاسې په شدّت سره)، او امر حکم شوی ما ته داسې چې شم له مؤمنانو (يقين لرونکو) نه. او (داسې حکم راباندې شوی) چې سم کړه مخ (ذات) خپل دين ته، حال دا چې کلک او ثابت يې په حق دين باندې، او مه کېږه له سره له مشرکانو. او مه بوله (په عبادت سره) پر ته (سوا) له الله هغه چې نفع نه رسوي تاته (بلنه د هغه) او نه ضرر رسولی شي تاته (نه بلنه د هغه)، نو که بالفرض دې وکړ (عبادت د غير الله)؛ نو بېشکه ته هم په دغه وخت کې يې له ظالمانو.

تفسير: يعنې که ځما طريقه او ديني مسالک ستاسې په فکر کې ځای نه دی نيولی، او تاسې پرې نه پوهېږئ، نو ځکه د هغه په نسبت په شکوکو او شبهاتو کې لويدلي يئ؛ نو زه د خپل دين اصل الأصول (چې خالص توحيد دی) دربنيم او درپوهوم يې.

خلاصه دا چې زه ستاسې د دغو فرضي معبودانو له عبادته سخت نفور او بېزار يم، چې د هغو اختيارول ځما له لوري له سره امکان نه لري، او نه ښايي چې تاسې دغه تصورات په خپلو زړونو کې وګرځوئ ! ځما عبادت خالص هغه الله قدّوس ته دی، چې د هغه په قبضه او واک (اختيار) کې ستاسې ارواح او ساوې دي، تر هغه وخته چې د ده حکم او اراده وي، هغه ستاسې په جسمونو کې پرېږدي، او هر کله چې اراده وفرمايي؛ سمدلاسه يې درخنې راکاږي، ګواکې د موت او حيات تار چې هغه ذات په قدرت او اختيار کې دی؛ د همغه عبادت کېدی شي نه يواځې دا چې په جوارحو سره د هغه عبادت کول ضروري دی، بلکه ښايي چې په زړه کې هم د ده په توحيد او تفريد پوره يقين او ايمان وي، او په ظاهر او باطن پر دغه حنيف دين چې د ابراهيم خليل الله دين دی؛ په پوره همّت او توجه سره استقامت په کار دی، او د جلي او خفي شرک نښې او آثار ښايي بيخي له منځه ورک شي.

وَإِن يَمْسَسْكَ ٱللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُۥٓ إِلَّا هُوَ ۖ وَإِن يُرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهِۦ ۚ يُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۚ وَهُوَ ٱلْغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٠٧﴾

او که ورسوي تاته الله کوم قسم ضرر (لکه مرض او فقر)؛ نو نشته لرې کوونکی د هغه (هيڅوک) مګر هم دی دی، او که اراده وکړي تاته د خير (لکه صحت او غنا)؛ نو نشته هيڅ منع کوونکی د فضل د ده، رسوي (الله) دا (خير) هر هغه چاته چې اراده وفرمايي له بندګانو خپلو نه، او هم دی ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ ٱلْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ ۖ فَمَنِ ٱهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِى لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۖ وَمَآ أَنَا۠ عَلَيْكُم بِوَكِيلٍ ﴿۱۰۸﴾

ووایه (ای محمده !) ای خلقو ! په تحقیق راغلی دی تاسې ته حق (قرآن او رسول) له جانبه د رب ستاسې، نو هر چا چې سمه لاره وموندله (ایمان او طاعت ته)؛ نو بېشکه هم دا خبره ده، چې لاره مومي لپاره (د نفع) د ځان خپل، او هر څوک چې ګمراه شو؛ نو بېشکه همدا خبره ده چې ګمراه کېږي پر ځان خپل (چې ضرر یې وررسیږي)، او نه یم زه پر تاسې باندې وکیل (ساتونکی د اعمالو ستاسې).

تفسیر: یعنې حق په واضح ډول سره له دلائلو او براهینو در رسېدلی دی، چې د هغه په نه قبلولو کې هیڅ یو معقول عذر د هیچا سره نشته، د پاک الله آخري حجّت هم پر بندګانو تمام شوی دی، نو اوس دې هر څوک خپله نفع او نقصان وسنجوي (سوچ وکړي)، او د هغه فکر دې له خپله ځانه سره وچلوي.

هر هغه څوک چې د پاک الله په ښوولې سمې لارې لاړ شي، په دنیا او آخرت کې کامیاب او بریالی کیږي، او هر هغه څوک چې دغه سمه لاره پرېږدي، او دغه لوري هغه لوري ته لالهانده او سرګردانه ګرځي؛ نو دی خپل ځان پخپله ذلیل، خوار او بې مقداره کوي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې آزاد او خپلواک او خپلسری سړی نه دی درلېږلی شوی، چې ستاسې د دغو افعالو تعهد او ذمه واري پخپله غاړه واخلي، یا ستاسې په ځای دې جواب ورکړي، د ده کار تش خبرول او سمه لاره ښوول دي، پر هغه لاره تلل پخپله د تلونکي کار دی.

وَٱتَّبِعْ مَا يُوحَىٰٓ إِلَيْكَ وَٱصْبِرْ حَتَّىٰ يَحْكُمَ ٱللَّهُ ۚ وَهُوَ خَيْرُ ٱلْحَٰكِمِينَ ﴿۱۰۹﴾

او متابعت وکړه (ای محمده !) د هغه څیز چې وحي کولی شي تاته، او صبر کوه (په طاعت او مصیبت او له معصیت) تر هغه پورې چې حکم وفرمایي الله (په نصرت او غلبه ستاسې)، او همدغه الله خیر غوره د ټولو حکم کوونکو دی.

تفسیر: په دې سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته تسلي ورکړی شوې ده، چې که دا خلق حق نه قبلوي؛ نو تاسې د دوی په غم کې خپل ځان له لاسه مه وباسئ ! تاسې دالله تعالی د احکامو متابعت کوئ ! او د تبلیغ او دعوت په کارونو کې تل لګیا اوسئ ! او پر هغو شدائدو چې په دغه لاره کې تاسې ته ورسیږي؛ صبر کوئ ! او د مخالفینو پر ایذاء او تکذیب تحمّل وکړئ، تر هغه پورې چې پاک الله د دوی او ستاسې په منځ کې ښه فیصله وکړي، یعنې سم له خپلې وعدې سره تاسې مظفر او منصور کړي، یا د جهاد حکم درولیږي.

تمّت سورة یونس علیه السلام بمنّه تعالی وفضله، فلله الحمد علی ذلک.



# سُورَةُ هُودٍ

«د هود سورت مكي دی، پرته له (۱۲، ۱۷، ۱۱۴) آيتونو چې مدني دي»

«(۱۲۳) آيتونه او (۱۰) ركوع لري، په تلاوت کې (۱۱)، او په نزول کې (۵۲) سورت دی، وروسته د يونس له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر مهربان پوره رحم كوونكى دى.

الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ①

(دا) كتاب دی چې محكم كړى شوي دي آيتونه د ده (چې ورته لاره نه مومي هيڅ نقصان او خلل)، بيا په تفصيل سره بيان شوی دی له نزده د لوی حكمت والا ښه خبردار څخه.

تفسير: يعني دغه قرآن كريم هغه عظيم الشأن او جليل القدر كتاب دى، چې ټول آيتونه يې د لفظي او معنوي او نورو حيثيتونو بيخي ثابت، قائم، آزمويلى شوى دى، تللى (وزن كړى شوى) او ښه سنجولى شوى دى.

نه په هغه کې څه تناقض شته، او نه كوم مضمون يې د حكمت او واقعيت په خلاف دى، او نه د اعجاز، فصاحت، بلاغت او نورو له پلوه په يوه توري او حرف يې څه تنقيد او اعتراض كېدى شي، هر هغه مضمون يې چې په هر عبارت سره اداء فرمايلى دى؛ محال دى چې له هغه څخه بهتر او ښه تعبير وكړى شي، د ګردو ضرورياتو كافي تفصيل يې بيان فرمايلى دى، په نزولي حيثيت کې همدغه حكمت مرعي دى، چې ټول قرآن يو ځلې نه دى نازل شوى، بلكه وقتاً فوقتاً د موقع او مصلحت په لحاظ د جلا جلا آيتونو نزول شوى دى.

د پاک قرآن دغو ګردو دقائقو او حقائقو ته په مجموعي ډول سره چې انسان ورته ګوري؛ حق حيران پاتې كيږي، مګر د حيرت ځاى نه دى، كه د مطلق حكيم، او د برحق خبير په كلام دغه ګرد حكمتونه او محاسن سره مجموع نه وي؛ نو د هغه توقع په بل كوم كلام کې كېدى شي؟ ! بلكه له سره نشي كېدى.

اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ

چې عبادت مه كوئ (د هيچا) مګر (يواځې) د الله عبادت كوئ.

تفسير: يعني د دې محكم او مفصّل كتاب د نازلولو لوى مقصد دا دى، چې ټول عالم يواځې د الله واحد د عبادت په لورې متوجه شي، او د هغه بلنه نورو ته وركړي، او طريقه يې وروښيي، نو د دغه عظيم او جليل مقصد لپاره ړومبى انبياوو تشريف راوړى وو، ﴿وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ﴾ (۱۷ جزء د الأنبياء سورت (۲۵) آيت (۲) ركوع)، ﴿وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ رَّسُوْلًا اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ﴾ (۱۴ جزء د النحل سورت (۳۶) آيت (۵) ركوع).

اِنَّنِيْ لَكُمْ مِّنْهُ نَذِيْرٌ وَّبَشِيْرٌ ②

(او ووايه اى محمده !) چې بېشكه زه تاسې ته له (طرفه د) الله وېروونكى يم (له جحيمه) او زيرى وركوونكى يم (په نعيم سره).

تفسير: يعنې هغه څوک چې کتاب الله ومني، او شرک او کُفر پرېږدي، او د الله واحد، احد، صمد عبادت وکړي؛ نو ده ته د دارينو د فلاح زېرى او بشارت اوروي، او هغه چې نه يې مني، او کفر او شرک ځان ته غوره کوي، نو هغه د الله تعالى له عذابه ويروي.

وَّاَنِ اسۡتَغۡفِرُوۡا رَبَّكُمۡ ثُمَّ تُوۡبُوۡۤا اِلَيۡهِ يُمَتِّعۡكُمۡ مَّتَاعًا حَسَنًا اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى وَّ يُؤۡتِ كُلَّ ذِىۡ فَضۡلٍ فَضۡلَهٗ‌ ؕ وَاِنۡ تَوَلَّوۡا فَاِنِّىۡۤ اَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ كَبِيۡرٍ ۳

او (پس له توحيده امر کوم) چې مغفرت وغواړئ له ربه خپله (د تېرو ګناهونو) بيا رجوع وکړئ الله ته (په طاعت سره له ګناه نه) چې فائده در رسوي تاسې ته په نفع غوره سره تر هغې نېټې پاکلې (مقرر کړى) شوى پورې، او ور به کړي (الله) هر خاوند د فضل ته فضل د هغه، او که وګرځېدئ تاسې (اى کفارو له اسلامه)؛ نو بېشکه زه وېرېږم پر تاسې له عذابه د ورځې لويې نه (د قيامت).

تفسير: هغه څوک چې د خپلو پخوانيو تقصيراتو معافي وغواړي، او د مستقبل لپاره دالله تعالى په لوري د زړه په صدق سره رجوع وکړي؛ نو دنيوي ژوندون يې په ښه ډول تېرېږي، ځکه چې قانت مؤمن په هر حال کې د پاک الله فضل او کرم ته لوى لوى اميدونه، هيلې (ارزوګانې) او اسرې کوي، دى د الله د رضا غوښتلو او د مستقبل د عظيم الشانې خوشالۍ او مسرّت په تصور کې دومره محظوظ او مستغرق اوسېږي؛ چې د دې دنيا له ډېرو ربړونو (تکليفونو) او سختيو څخه هم دومره نه متأثر کېږي، دى چې کله خيال کوي چې زه په خپل ژوندون کې خپله فريضه په صحيح ډول سره پاى (انجام) ته ورسوم؛ چې د هغه صله به خامخا يوه ورځ د عرش عظيم د لوى څښتن (خاوند) له حضوره ماته راکوله کېږي.

﴿وَّ يُؤۡتِ كُلَّ ذِىۡ فَضۡلٍ فَضۡلَهٗ﴾ يعنې هومره يې چې عمل ورزياتېږي؛ په همغه اندازه د الله تعالى له فضله زياته برخه مومي، په آخرت کې اجر او ثواب او په دنيا کې زيات طمانيت او ډاډينه ور په برخه کېږي.

﴿وَاِنۡ تَوَلَّوۡا﴾ الآيه - يعنې که څما خبره نه منئ؛ نو د قيامت عذاب يقيني دى، باقي داسې فرمايل: چې زه وېرېږم په تاسې؛ له دې نه مقصود د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم عمومي شفقت او د خلائقو سره د همدردۍ او خواخوږۍ اظهار دى.

اِلَى اللّٰهِ مَرۡجِعُكُمۡ‌ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ۴ اَلَاۤ اِنَّهُمۡ يَثۡنُوۡنَ صُدُوۡرَهُمۡ لِيَسۡتَخۡفُوۡا مِنۡهُ‌ ؕ اَلَا حِيۡنَ يَسۡتَغۡشُوۡنَ ثِيَابَهُمۡ ۙ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّوۡنَ وَمَا يُعۡلِنُوۡنَ‌ ۚ اِنَّهٗ عَلِيۡمٌ ۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ۵

خاص الله ته بېرته ورتله ستاسې دي، او الله په هر څيز باندې ښه قادر دى. خبردار شئ! بېشکه دوى (دا کفار) تاووي سينې خپلې (او پټوي عداوت د رسول په زړونو خپلو کې) لپاره د دې چې پټ کړي خپل ځانونه له الله نه، واورئ! خبردار شئ! په هغه وخت کې چې واغوندي دوى جامې خپلې؛ عالم دى (الله) په هغه څيز چې پټوي يې دوى (په سينو خپلو کې) او هغه څيز چې ښکاروي يې (په ژبو خپلو)، بېشکه الله ښه خبردار دى په پټو خبرو د سينو (هم).

تفسير: د سزا ورکولو لپاره دغه خبره ضروري ده؛ چې مجرم حاضر وي، حاکم ته د سزا ورکولو پوره قدرت او قوت او کامل اختيار حاصل وي، مجرمينو ته پر ټولو کارونو او اجراءاتو يې علم حاصل وي، په ﴿اِلَى اللّٰهِ مَرۡجِعُكُمۡ﴾ کې دا راښوولې شوي دي، چې مجرم او غير مجرم ټول د پاک الله په دربار کې حاضرېږي، په ﴿وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ﴾ کې يې د

عمومي قدرت او اختيار بيان فرمايلى دى، او د ﴿أَلَآ إِنَّهُمْ يَثْنُونَ﴾ څخه تر ﴿بِذَاتِ الصُّدُورِ﴾ پورې د ده د محيط علم وسعت ظاهر شوى دى، چې پر پاک الله ظاهري او باطني ټولې خبرې يو شان ته ظاهرې او هيڅ يو شى ترې پټ نه دى، او پر هر شي باندې ښه پوهه او خبردار دى، تر دې پورې چې د زړونو د کومې له پټو خبرو، نياتو او اراداتو څخه هم باخبر دى، نو بيا مجرم خپل جرم په څه ډول له ده څخه پټولى شي.

﴿وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي ٱلۡأَرۡضِ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ رِزۡقُهَا وَيَعۡلَمُ مُسۡتَقَرَّهَا وَمُسۡتَوۡدَعَهَاۚ كُلٌّ فِي كِتَٰبٖ مُّبِينٖ ۝٦﴾

او نشته هيڅ تلونکى (خوځېدونکى ذي روح) په ځمکه کې مګر چې دى پر الله رزق (روزي) د هغه (تفضّلاً ترحّماً نه وجوباً)، او عالم دى (الله) په ځاى د اوسېدلو د هغه او ځاى د سپارېدلو د هغه، ټول (دا مذکوره اشياء) په کتاب واضح کې دي.

تفسير: پورتنى د الله تعالى د علم وسعت بيان وو، دا د همغه مضمون تکمله ده، يعنې پر ځمکه د هر ساکښ (ذي ورح) تلونکى او خوځېدونکى چې طعام او خوړو ته احتياج لري، د هغو د ټولو رزق او روزي ورکول الله پاک محض پخپل فضل او کرم سره پخپله ذمه لازمه فرمايلې ده، هومره روزي چې د هر يوه لپاره مقدّره ده، هغه يقيناً وررسېدونکې ده، هغه وسائل او اسباب چې بنده يې اختياروي؛ ټول د روزي رسولو ابواب او وَرُونه دي.

﴿وَيَعۡلَمُ مُسۡتَقَرَّهَا﴾ الآيه ـ «او عالم دى الله په ځاى د اوسېدلو د هغه او ځاى د سپارېدلو د هغه»، شاه صاحب ليکي: «(مستقر) هغه ځاى دى چې هستوګنه په کې کيږي، لکه جنت او دوزخ او (مستودع) هغه ځاى دى چې انسان په کې سپارل کيږي لکه قبر»، پاس په ﴿وَمَا مِن دَآبَّةٍ﴾ الآيه ـ کې د دنيوي ژوندون بيان وو، دلته د «برزخ» او د آخرت بيان دى، مطلب داسې دى: «او دى ښه خبردار دى».

د «مستقر» او د «مستودع» په تعيين کې د مفسرينو ډېر اقوال دي، چې د هغه په نسبت مونږ د الأنعام په سورت کې څه ليکلي دي.

﴿وَهُوَ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٖ وَكَانَ عَرۡشُهُۥ عَلَى ٱلۡمَآءِ لِيَبۡلُوَكُمۡ أَيُّكُمۡ أَحۡسَنُ عَمَلٗاۗ وَلَئِن قُلۡتَ إِنَّكُم مَّبۡعُوثُونَ مِنۢ بَعۡدِ ٱلۡمَوۡتِ لَيَقُولَنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّا سِحۡرٞ مُّبِينٞ ۝٧﴾

او دغه (الله) هغه ذات دى چې پيدا کړي يې دي آسمانونه او ځمکه په شپږو ورځو کې حال دا چې وو عرش (تخت) د ده پر اوبو (پيدا کړي دي الله دا ټول آسمانونه او ځمکه او ما فيهما لپاره د منافعو ستاسې او) لپاره د دې چې وازمويي تاسې چې کوم يو له تاسې ډېر ښه دى له جهته د عمل، او قسم دى چې خامخا که ووايې ته (خپل قوم ته) چې بېشکه تاسې بيا ژوندي کيدونکي يئ پس له مرګه؛ نو هرومرو وبه وايي خامخا هغه کسان چې کافران شوي دي، چې نه دى دغه (قرآن چې بيا ژوندون وايي) مګر سحر (جادو) ښکاره.

تفسير: په پيدايښت د آسمانونو او ځمکه کې د الله تعالى له علم څخه وروسته د ده د قدرت بيان دى، د دې تفسير (په ۸ جزء د الأعراف سورت په (۵۴) آيت (۷) رکوع کې) تېر شوى دى.

﴿وَكَانَ عَرۡشُهُۥ عَلَى ٱلۡمَآءِ﴾ يعنې د ځمکې او آسمان له پيدا کولو څخه پخوا اوبه مخلوق شوي، چې په مستقبل کې د ټولو اشياوو د ژوندانه ماده ګرځېدونکې شوې: ﴿وَجَعَلۡنَا مِنَ ٱلۡمَآءِ كُلَّ شَيۡءٍ حَيٍّ﴾ (۱۷ جزء د الأنبياء (۳۰) آيت (۳) رکوع)، په دغه وخت کې د الله تعالى عرش د دې د پاسه وو، کله چې اوس د آسمانونو د پاسه دى، ګواکې دغه يو صورت وو چې دغه

حقیقت یې ښکاره کولو چې د کائناتو ماده او د حیات ذریعه بالکلیه د رب العرش تر تسلّط او تصرّف او مطلقه قیومیت لاندې ده، او د الله تعالی ذات حقیقة د عرش له پاسه دی، او عرش یې په نورو ټولو مخلوقاتو له پاسه دی، والله أعلم.

وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلَىٰ أُمَّةٍ مَّعْدُودَةٍ لَّيَقُولُنَّ مَا يَحْبِسُهُ ۗ أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿٨﴾

او قسم دی چې خامخا که وروستی کړو مونږ له دوی څخه (هغه) عذاب (چې موعود دی) تر راتلو د اوقاتو شمېرلیو شویو پورې؛ نو هرومرو (خامخا) به وایي دوی (استهزاءً): څه شیز بند کړی دی دا (عذاب له نزوله؟ نو فرمایي الله) خبردار شئ واورئ ! په هغه ورځ چې راشي دا (عذاب) دوی ته؛ نو نه به وي (دا عذاب) دفع کړی شوی له دوی څخه، او چا پېر به شي له دوی نه هغه عذاب؛ چې وو دوی چې په هغه پورې به یې مسخرې کولې (او په جلتی به یې غوښت).

تفسیر: یعنې کله چې دغو کفّارو ته د دوی د شرارتونو له سببه د الله تعالی له عذابه وېره ورکوله کیږي؛ نو د تکذیب او استهزاء په ډول وایي چې: راوړه هغه عذاب دې چېرې دی؟ ولې نه رانازلیږي؟ او د څه لامله ځنډ (ایسارتیا) په کې کیږي؟ او د چا له لوري هغه ستون شوی دی؟ نو پاک الله فرمایي چې: آیا تاسې په داسې ویناوو سره ټوکې او مسخرې کوئ؟ او نه پوهېږئ چې هغه عذاب د الله تعالی د حکمت او مصلحت په اقتضاء تر یوه ټاکلي (مقرر کړي) مدت پورې معطل شوی دی؟ او پخپل معیّن وخت کې به خامخا داسې در ورسیږي، چې هیڅوک به یې مخه نشي نیولی، او له هر لوري څخه به په عذاب چار چاپېر کړی شئ، او ټول به فنا کېږئ.

وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ إِنَّهُ لَيَئُوسٌ كَفُورٌ ﴿٩﴾

او قسم دی خامخا که وروڅکوو مونږ (کافر، یا ناشکر انسان) ته له نزده خپله رحمت (لکه صحت او نعمت چې اثر یې ښکاره وي)، بیا بېرته راټول کړو مونږ دا نعمت له ده نه؛ بېشکه دی خامخا نا امیده (له کرمه د الله) ناشکره (له نعمته د الله) وي.

تفسیر: یعنې که د څو ورځو له مخې یې الله تعالی د خپلې مهربانۍ په عیش او عشرت او آرامۍ کې وساتي، او بیا یې په کوم رنځ او تکلیف کې اخته او مبتلا کړي، نو دی هغه پخوانۍ هوسایي (آرام) او مهرباني هم بیخي له زړه وباسي او هیروي یې، او بې هیلې او نا امیده کیږي، او د مستقبل په نسبت بیخي بې اسره او مایوس کیږي، په تېره باندې ناشکري، او له راتلونکي څخه مایوسي همدا د ده د ژوندون حاصل دی.

وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ نَعْمَاءَ بَعْدَ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّئَاتُ عَنِّي ۚ إِنَّهُ لَفَرِحٌ فَخُورٌ ﴿١٠﴾

او قسم دی خامخا که وروڅکوو مونږ دغه (کافر یا ناشکره انسان) ته نعمت (لکه صحت او هوسایي ـ آرام) وروسته له (هغه) ضرره چې رسېدلی وو ده ته؛ نو هرومرو (خامخا) وایي به دی خامخا: لاړې سختی (چې رارسېدلې وې) له ما څنې، بېشکه دغه (انسان) خامخا خوشالیدونکی دی (پر نعمتونو) متکبّر فخر کوونکی دی (پر خلقو).

تفسیر: یعنې که له مصیبته وروسته بیا پاک الله ده ته آرامي او هوسایي ور په برخه کړي؛ نو بیا داسې ګڼي چې ګواکې اوس بیخي مصائبو او تکالیفو خاتمه موندله، او بیا هغه پخوانۍ کیفیت له سره راتلونکی نه دی، نو په دغه وخت کې د غفلت او غرور په نشو کې مستیږي، او فخر او تکبر او ځانمني (خودنمایي) کوي، او حال دا چې ده لره داسې په کار

وو؛ چې هغه خپل پخوانی حالت به يې تل په ياد درلود، او د الله تعالى شکر به يې ادا او د ده لطف او احسان په مقابل کې به يې د تواضع سر ښکته کوه.

﴿إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ﴾ ۱۱

مګر هغه کسان چې صبر کوي (په سختۍ له قوته د ايمانه) او کوي ښه (عملونه لپاره د شکر د نعمت)؛ دغه(صابرين او شاکرين) شته دوی ته مغفرت (د ګناهونو) او اجر (ثواب) ډېر لوی.

تفسير: هغه حال چې مخکې د عامو انسانانو بيان شو، له هغه ځنې د الله تعالى هغه بندګان مستثنى دي، چې د تکليف او مصيبت مقابله په صبر او استقامت سره کوي، او د امن او راحت په وخت کې سره له شکر ايستلو په صالحه وو اعمالو کې هم خپل تيارى ښکاره کوي، د همداسې اولوالعزمو او وفادارانو ټولى د عظيم الشان بخشش او انعام مستحق دی، او په ډېر لوی اجر چې ادنى يې جنت او اعلى يې ديدار دی؛ فايز کيږي.

﴿فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ بَعْضَ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَن يَقُولُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ ۚ إِنَّمَا أَنتَ نَذِيرٌ ۚ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ﴾ ۱۲

نو ښايي ته به پرېښودونکى يې (يعنې مه پرېږده) ځينې د هغه قرآنه چې وحي کولی شي تاته، او تنګېدونکې ده په (تبليغ د) هغه سره سينه (زړه) ستا (له دې وېرې) چې وايي به دوی: ولې نه ده نازله شوې په ده باندې خزانه (چې پرې وکړي عشرت)؟ يا (ولې نه ده) راغلې له ده سره پرښته (چې ورکړي شهادت د نبوت)؟ بېشکه همدا خبره ده چې ته ويروونکى يې (له جحيمه، نه څارونکى د اعمالو د دوی)، او الله پر هر شي باندې وکيل (ښه ساتونکى) دی، (د هغه چا چې وروسپاري ځان خپل، نو له سره مه وېرېږه له عناد د دوی نه).

تفسير: د مکې معظمې مشرکان د شرک او بت پرستى له ترديده او بدو ويلو څخه ډېر په قهرېدل، او په غيظ او غضب راتلل د مشرکيت پر خُرافاتو په هره اندازه چې د هغو تحميق او تجهيل کېده؛ په همغه اندازه به دوی د غُصې په اور کې سوځېدل، کله به يې کوښښ کوه چې پاک رسول په دغې معاملې کې لږ څه سست او پوست شي، او د دغې اساسي او لويې مسئلې په تبليغ کې له لږ څه نرمۍ او تساهل څخه کار واخلي، کله چې له دې لوري مايوس او بې هيلې (نا اميده) شول؛ نو تش د تکليفولو او محض خفه کولو لپاره په عجيبو چټي (بېکاره) غوښتنو پسې لګيا شول، مثلاً ويل به يې چې: ته خو رښتين او د رسالت پر منصب مامور يې، نو له تا سره د پاک الله له درباره ښايي چې د مال او دولت لويه خزانه راغلې وی، يا له آسمانه له تا سره يو پرښته راتلې، چې هر چېرې به در سره د تصديق لپاره تللې وی: ﴿لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ﴾په همدغې سلسلې کې دغه آيتونه نازل شول، چې حاصل يې دا دی: «ته د دې خلقو د دغو چټي او بېکاره غوښتنو لامله مه غمجن او مه فکر مند او مه خفه کېږه، او مه پخپل زړه کې د دغو خلقو د خاطر او مراعاتو خيال ګرځوه !.

کله داسې کېدی شي ! هغه شيان چې الهي وحي تاته درښوولي دي، او د هغه د تبليغ حکم يې بې خوفه او بې خطره درکړی دی؛ چې ته د هغه ځينې برخې د دې خلقو له خرافاتو څخه د زړه تنګی په وجه پرېږدې، حال دا چې دغه کار امکان نه لري، ځکه چې د نبوت عصمت او د اولوالعزمی صفت يې مانع دی، نو بيا له زړه تنګی څخه څه فائده؟ ستاسې کار تش له خير او شر څخه خبرول دي، د دوی د هدايت ذمه واري پر تاسې نه ده، د دوی دغه معامله هم هغه الله تعالى ته وروسپاره؛ چې ګرد شيان هغه ته سپارلی شوي، او د ده په واک کې دي.

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ ۖ قُلْ فَأْتُوا بِعَشْرِ سُوَرٍ مِّثْلِهِ مُفْتَرَيَاتٍ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٣﴾ فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنزِلَ بِعِلْمِ اللَّهِ وَأَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ ﴿١٤﴾

بلکه آیا وایي دوی چې له خپله ځانه جوړ کړی دی (محمد) دا (قرآن چې تصدیق یې و کړي)؟ ووایه (ای محمده ! دوی ته): نو راوړئ تاسې لس سورتونه په شان د یوه سورت د ده (فصیح بلیغ) له خپل ځان جوړ کړی شوی، او راوبولئ هغه کسان چې توانېږئ تاسې (لپاره د کومک) غیر له الله څخه که یئ تاسې صادقان (رښتیني په دغې ادعا د افتراء کې). نو که جواب درنه کړ دوی تاسې ته (ای رسوله او مسلمانانو)؛ نو پوهه شئ (ای مسلمانانو) چې بېشکه همدا خبره ده چې رالېږلی شوی دی (قرآن) په علم د الله سره (د بنده کلام نه دی)، او (بل پوه شئ په یقین سره او پرې ثابت شئ) چې نشته هیڅ لایق د عبادت مګر هـم دغه الله دی، نو آیا یئ تاسې مسلمانان.

تفسیر: ځینو مفسرینو د دې آیت ترجمه داسې هم کړې ده: «نو که جواب درنه کړ دغو بللو شویو تاسو ته ای مشرکینو !؛ نو پوه شئ ای کفّارو چې بېشکه همدا خبره ده، چې رالېږلی شوی دی دا قرآن په علم د الله سره، د بنده کلام نه دی، او پوه شئ تاسې په یقین سره چې نشته لایق د عبادت هیڅوک مګر هم دغه الله دی، آیا نو یئ تاسې مسلمانان غاړه ایښودونکي اسلام ته بلکه اسلام راوړئ !».

یعنې فرمایشي معجزې غواړې، چې د هغو ورکول مصلحت نه دی، او له هغو ټولو څخې لویه معجزه قرآن چې د دوی په مخ کې دی؛ نه مني، او وایي (معاذ الله): دغه خو له خپله ځانه جوړې کړې خبرې دي، نو د هغه ځواب ورکوي، چې آخر تاسې هم عرب او د فصاحت او بلاغت دعوی کوونکي یئ؛ ټول سره راټول شئ، او د دې پاک قرآن د لسو سورتونو په شان نور لس سورتونه له خپله ځانه جوړ کړئ، او په دغه کار کې د خپلې مرستې لپاره ټول مخلوقات بلکه خپل هغه معبودان هم راوبولئ؛ چې تاسې یې په الوهیت کې شریکان ګڼئ، او که دا کار ونه کړی شئ، او له سره به یې ونه کړی شئ؛ نو وپوهېږئ چې داسې کلام یواځې د پاک الله کلام کېدی شي، چې د هغه له مثل راوړلو څخه ټول مخلوقات عاجز پاتې کېږي.

مَن كَانَ يُرِيدُ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا نُوَفِّ إِلَيْهِمْ أَعْمَالَهُمْ فِيهَا وَهُمْ فِيهَا لَا يُبْخَسُونَ ﴿١٥﴾

هـر څوک چې وي (له خپلې کم همتۍ) چې غواړي یواځې ژوندون لږ خسیس او ښایست د ده (او د آخرت فکر نه کوي)؛ نو پوره به ورکړو دوی ته (بدل د) اعمالو د دوی په دې دنیا کې حال دا چې دوی په دې دنیا کې نه شي کم کېدلی (له بدل د اعمالو د دوی هیڅ شی).

تفسیر: یعنې له داسې واضح ثبوت څخه وروسته څوک چې په قرآن ایمان نه راوړي، یا د هغه پر ښوونې لارې نه ځي، بلکه د دنیا څو ورځې ژوندون او فاني ډول او سینګار یې د خپل مقصود قبله درولې وي، او عملي جد او جهد ورته کوي، که په ښکاره کوم نېک کار لکه خیرات او نور کوي؛ نو له هغه څخه هم د آخرت بهترې او د الله تعالی خوښې مقصود نه وي، او یواځې د دنیوي فوائدو حاصلول یې تر سترګو لاندې وي، د داسې خلقو په نسبت اعمّ له دې چې یهود وي که نصاری، مشرکین وي که منافقین یا دنیا خوښوونکي ریاکار مسلمانان؛ دا یې راښوولې دي چې په دنیا کې د دغو ټولو معامله پای (آخر) ته رسولی شي، هغه اعمال او کوښښونه چې دوی یې د دنیا د حصول لپاره اراده وفرمایې؛ ورعطا کوي یې.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْآخِرَةِ إِلَّا النَّارُ ۖ وَحَبِطَ مَا صَنَعُوا فِيهَا وَبَاطِلٌ مَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۶﴾

دا هغه کسان دي چې نشته دوی ته په آخرت کې مګر اور، او خراب شوي دي هغه (نېک عملونه) چې کړي وو دوی په دې دنیا کې، او باطل دي (په آخرت کې) هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به يې (په دنيا کې).

تفسیر: یعنې پر دغو اعمالو پرته (علاوه) له دوزخه د بل کوم شي مستحق نه دي، کفار په ابدي صورت او رياکاران مسلمانان به تر محدوده مدت پورې په دوزخ کې پاتې کيږي، هو ! که الله تعالى ځنې مؤمنان محض پخپل فضل او کرم سره وبخښي؛ نو هغه بېله خبره ده.

په دنیا کې کوم کارونه چې تاسې د دنیوي اغراضو لپاره کړي وو، وروسته د آخرت له رسېدلو څخه درښکاريږي، چې هغه خراب او برباد تللي دي، او د رياکارۍ او د دنيا خوښولو په سلسله کې ظاهرا هغه نيکي ا و محاسن چې کړي يې وي؛ هغه ګرد سره خراب او توی ځي، او هلته به يو شی په کار نه ورځي.

أَفَمَن كَانَ عَلَىٰ بَيِّنَةٍ مِّن رَّبِّهِ وَيَتْلُوهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ وَمِن قَبْلِهِ كِتَابُ مُوسَىٰ إِمَامًا وَرَحْمَةً ۚ أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۚ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ۚ فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ إِنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۱۷﴾

آيا پس هغه څوک چې دی پر صاف برهان (واضح دليل) له جانبه د رب خپل، او تابع وي دې د (برهان) پسې شاهد له (جانبه) د الله، او پخوا له دې (شاهده چې قرآن دی) کتاب د موسی (تورات شاهد وو) په دې حال کې چې پېشوا او رحمت وو (مؤمنانو ته دغه تورات، آيا هغوی او د دنيا غوښتونکو سره برابر دي؟ بلکه نه دي برابر، دغه خاوندان د برهان) دغه کسان ايمان لري په دې (قرآن)، او هر څوک چې کافر شو په دې (قرآن) له ګردو فرقو (د کافرو) څخه؛ نو اور (د دوزخ) ځای د وعدې د هغه دی (چې خامخا ورته ورځي)، نو مه کېږه په شک کې له دې (قرآن يا موعد نه)، بېشکه چې هغه حق دی له جانبه د رب ستا، وليکن اکثره د خلقو نه راوړي ايمان (په دې خبره باندې چې منزّل من الله دی).

تفسیر: یعنې دغه سړی او هغه رياکار دنيا پرست چې پخوا يې ذکر وشو؛ څرنګه برابرېدی شي؟ له سره نه دي برابر، له «بينه ـ صافه لاره» څخه مراد هغه لاره ده؛ چې هر انسان پخپل اصلي او صحيح فطرت سره موافق تلنه وغواړي، په دې شرط چې د اطرافو او حواليو له حالاتو او خيالاتو ځنې متأثر نشي، او هغه د اسلام او د توحيد او د قرآن سمه لاره ده: ﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ۚ فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (۲۱ جزء د الرّوم سورت (۳۰) آيت (۴) رکوع)، او په حديث کې راغلي دي: «كلُّ مولودٍ يولدُ على فطرةِ الإسلام، فأبواه يهوِّدانه أو يُنصرانه، أو يُمجّسانه ـ الحديث».

او ﴿شَاهِدٌ مِّنْهُ﴾ ګواه د پاک الله له لوري لوی قرآن دی، چې ګواهي ورکوي: چې د فطرت پر دين توحيد او اسلام باندې تلونکي پر سمه لاره تلونکي دي، او همغه قرآن چې پر خپل حقانيت باندې هم پخپله ګواه دی، د لمر دليل پخپله لمر دی.

څرنګه چې د پاک قرآن راوړونکي جبرئيل امين عليه السلام او آخيستونکی يې محمد امين عليه السلام دی، نو په دغه اعتبار دغو دواړو ته هم شاهد ويلی شي، بلکه پخپله د رسول الله مبارک شان دغه دی، چې د ده اخلاق، عادات،

معجزات، مبارک ژبه، نوراني څېره او له نورو ټولو شيانو څخه يې معلومېږي، او هر يو بېل بېل شهادت ورکوي، د هغه دين حامل چې محمد صلی الله عليه وسلم دی؛ هغه حقيقتاً بيخي حق او رښتيا دی، وروسته د ﴿وَمِن قَبۡلِهِۦ كِتَٰبُ مُوسَىٰٓ إِمَامٗا وَرَحۡمَةً﴾ دغه مطلب دی، چې پخوا له قرآنه هره وحي چې پر هر نبي راغلې ده؛ هغه هم د فطرت د دين پر صداقت ګواه ده، خصوصاً هغه عظيم الشأن کتاب «تورات» چې پخوا له قرآنه پر موسی عليه السلام نازل شوی دی؛ هغه يو لوی شاهد د هغو خلقو پر حقانيت ښايي وويلی شي؛ چې د فطرت د دين پر صافه لاره تلونکي دي.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ يُؤۡمِنُونَ بِهِۦ﴾ الآيه ـ يعنې يهود او نصاری، بت پرست، عرب عجم، آسيا، افريقا، امريکا، اوروپا، استراليا او نور له هرې فرقې او هر جماعت چې د هر ملک او ملت څخه وي، تر څو پاک قرآن ونه مني؛ نو له سره يې نجات په برخه کېدی نشي، لکه چې د صحيح مسلم او د نورو په احاديثو کې رسول الله صلی الله عليه وسلم په ډېره تصريح او تعميم سره دغه بيان فرمايلی دی.

وَمَنۡ أَظۡلَمُ مِمَّنِ ٱفۡتَرَىٰ عَلَى ٱللَّهِ كَذِبًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ يُعۡرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمۡ وَيَقُولُ ٱلۡأَشۡهَٰدُ هَٰٓؤُلَآءِ ٱلَّذِينَ كَذَبُواْ عَلَىٰ رَبِّهِمۡۚ أَلَا لَعۡنَةُ ٱللَّهِ عَلَى ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٨﴾ ٱلَّذِينَ يَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ وَيَبۡغُونَهَا عِوَجٗا وَهُم بِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ كَٰفِرُونَ ﴿١٩﴾

او څوک دي ډېر ظالم له هغه چا چې تړي له ځانه پر الله پورې دروغ (چې نسبت د ولد يا د شريک ورته کوي؛ بلکه نشته)، دغه (دروغ تړونکي) وړاندې به کړل شي په (قيامت کې) رب خپل ته، او وبه وايي شاهدان (کرام الکاتبين او نور) چې هم دوی دي هغه کسان چې دروغ يې تړلي وو په رب خپل (په نيولو د ولد او شريک سره، نو فرمايي الله): واورئ ! خبردار شئ ! لعنت د الله دې وي پر ظالمانو. هغه ظالمان (کافران) چې اړوي خلق له لارې (د دين) او لټوي دوی په دغې (لارې) کې کوږوالی (عيب)، او هم دوی په آخرت هم دوی کافران منکران کېدونکي دي.

تفسير: يعنې پاک قرآن دروغ او افتراء نه دی، بلکه د پاک الله حق او رښتيا پيغام دی، چې قبلول او منل يې ضروري دي، او ښه وپوهېږئ چې له هغه سړي څخه زيات ظالم بل هيڅوک نشي کېدی؛ چې پر الله تعالی باندې دروغ وتړي، مثلاً که د الله کلام نه وي، او دې ووايي چې دغه د الله کلام دی، يا واقعي د پاک الله کلام وي، او پخپله الله تعالی څو څو کرته وفرمايي چې دغه ځما کلام دی، مګر دوی سره له روښانو دلائلو هغه دروغجن کوي.

﴿أُوْلَٰٓئِكَ يُعۡرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمۡ﴾ الآيه ـ «دغه دروغ تړونکي به وړاندې کړی شي په قيامت کې رب خپل ته» په محشر کې کله چې دوی د پاک الله په مخ کې علی رؤوس الأشهاد وړاندې کيږي، او د دوی د شرارتونو دفاتر پرانستلی شي؛ نو په دغه وخت کې شاهدي ورکوونکي (ملائکې، انبياء، صالحين، بلکه د دوی خپل لاسونه، او پښې او رئيسه اعضاء) به ووايي، چې دوی همغه بدبختان ظالمان دي، چې د خپل پاک الله په نسبت يې دروغ تړلي وو، او چټي (بېکاره) خبرې به يې کولې.

أُوْلَٰٓئِكَ لَمۡ يَكُونُواْ مُعۡجِزِينَ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنۡ أَوۡلِيَآءَۘ يُضَٰعَفُ لَهُمُ ٱلۡعَذَابُۚ مَا كَانُواْ يَسۡتَطِيعُونَ ٱلسَّمۡعَ وَمَا كَانُواْ يُبۡصِرُونَ ﴿٢٠﴾

دا کفار نه دي دوی عاجز کوونکي (د الله) په ځمکه کې، او نه به وي دوی ته غير له الله هيڅ دوستان (چې عذاب ترې دفع کړي که اراده وفرمايي بلکه) دوه چنده به کړ شي دوی ته عذاب،

نه وو دوی چې طاقت يې لرلی وی د اورېدلو (د حق) او نه وو دوی چې ليدلي يې وی (دلائل د قدرت).

تفسير: يعنې په دومره وسيعې او ارتې ځمکې کې نه چېرې تښتېدی شي، او نه په کوم ځای کې پټېدی شي، او نه يې شوک مددګار او حمايت او مرسته کوونکی کېدی شي، چې دوی د الله تعالی له عذابه بچ کړي، ځکه چې دوی هم پخپله بې لارې او ګمراهان شوي دي، او هم نور خلق يې ګمراهان کړي دي.

﴿مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ﴾ نه وو دوی چې طاقت يې وی د اورېدلو د حق د زړه له کوڼوالي، او نه وو دوی چې ليدلي يې وی دلائل د قدرت د زړه له ړوندوالي، يعنې په دنيا کې داسې ړانده او کاڼه شوي دي؛ چې نه د حق د خبرو د اورېدلو توان لري، او نه د الله تعالی د قدرت دلائل او نښې ليدلی شي، چې د هغو په ليدلو سره ممکن دي چې د هدايت سمه صافه لاره ومومي.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢١﴾

هم دوی دي هغه کسان چې زيان يې رسولی دی نفسونو (ځانونو) خپلو ته، او ورک شول له دوی هغه چې وو دوی چې دروغ يې تړل.

لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ﴿٢٢﴾ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٣﴾

حقه خبره دا ده چې بېشکه دوی په آخرت کې هم دوی ډېر زيانکاران دي (له نورو نه). بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) او عاجزي کوي دوی رب خپل ته دغه کسان صاحبان (اوسيدونکي) د جنت دي، دوی به په دې جنت کې همېشه وي.

تفسير: د مجرمينو د بد انجامی او د خرابې خاتمې په مقابل کې يې د مؤمنينو انجام او حسن د خاتمې بيان وفرمايه، د دوی عجز او نياز (خلوصيت) د پاک الله خوښ شو، نو ځکه د دائمې خوښی مقام يې ورعطا کړه.

مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ كَالْأَعْمَىٰ وَالْأَصَمِّ وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ ۚ هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾

مثال د دې دواړو فرقو (داسې دی) لکه د ړانده او د کاڼه او (لکه) د ليدونکي او د اوريدونکي، آيا برابر دي دغه دواړه له جهته د مثاله (او صفته؟، بلکه نه دي برابر)، آيا نو نه اخلئ پند تاسې؟ (په دغو مثالونو سره او فکر په کې نه کوئ).

تفسير: يعنې منکرين ړانده او کاڼه دي، لکه چې درې آيته پخوا له دې نه يې وفرمايل: ﴿مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ﴾ بيا هغه چې نه پخپله څه ليدلی شي، او نه له بل چا څخه څه شی اورېدلی شي، د دوی ابتداء او انتهاء د هغوی روڼ ضمير له ايماندارانو سره څرنګه برابرېدی شي، هغه کسان چې د بصيرت په سترګو د حق او باطل او خير او شر په منځ کې تميز کوي، او د خپلو هاديانو خبرو ته غوږونه نيولي غور کوي، چې د دواړو پای (آخر) او انجام څرنګه يو شان کېدی شي؟ بلکه نشي کېدی، وروسته د نوح عليه السلام د قوم قصه د دې مضمون په تاييد وړاندې کوي.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا نُوْحًا اِلٰى قَوْمِهٖٓ اِنِّيْ لَكُمْ نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ۝ اَنْ لَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ ؕ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ اَلِيْمٍ ۝

او هرومرو په تحقيق لېږلى وو مونږ نوح قوم د ده ته (حال دا چې ويونكى وو): بېشكه زه تاسې ته يم ويروونكى (له جحيمه) ښكاره. چې مه كوئ تاسې عبادت (د بل چا) بې له الله، بېشكه زه ويرېږم پر تاسې له عذابه د ورځې دردناكې (د قيامته) څخه.

تفسير: يعنې په نهايت وضاحت سره زه هغه شيان درښيم چې د هغو په ارتكاب سره د مهلك عذاب د نازلېدو اندېښنه ده، يا د هغه د محفوظيت ذرائع دي.

﴿اَنْ لَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّا اللّٰهَ﴾ «مه كوئ عبادت د بل چا بې له الله !»، يعنې د (ودّ) او (سواع) او (يغوث) او (يعوق) او (نسر) چې ذكر يې د نوح عليه السلام په سورت كې راځي؛ عبادت پرېږدئ ! او د واحد احد الله تعالى په عبادت كې مشغول شئ ! كه نه د غير الله له عبادت څخه د بېرته نه ګرځېدلو په صورت كې د سخت عذاب د راتلو خوف دى.

فَقَالَ الْمَلَاُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ قَوْمِهٖ مَا نَرٰىكَ اِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا وَمَا نَرٰىكَ اتَّبَعَكَ اِلَّا الَّذِيْنَ هُمْ اَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّاْيِ ۚ وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍۭ بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِيْنَ ۝

نو وويل هغو مشرانو چې كافران شوي وو له قومه د دغه (نوح) چې: نه وينو مونږ تا مګر يو بشر پشان ځمونږ (بل څه مزيت نه لرې)، او نه وينو مونږ تا چې متابعت كړى ستا (هيچا) مګر هغه كسانو چې دوى د لاندې (ښكته) ځمونږ دي په بې فكرئ سره (يعنې سرسري نظر والا دي)، او نه وينو مونږ تاسې لره پر مونږ باندې هيڅ بهتري، بلكه ګمان كوو مونږ پر تاسې د دروغجنانو.

تفسير: يعنې ښايي چې رسول د ټول قوم په مقابل كې د كومې ښكاره نښې او امتياز لرونكى وي، ليكن مونږ ګورو چې ته هم ځمونږ په شان د بشر له جنسه يې، او د آسمان پرښتنه نه يې چې د هغې په مقابل كې خامخا انسان خپل سر ښكته كړي، بيا په بشريت كې هم ته داسې يو سړى نه يې چې په تا كې كوم خاص تفوّق او لويي پر مونږ باندې وي، مثلاً لوى دولتمن، يا د شان او شوكت خاوند، يا د حكومت او قوت مالك اوسې، هغه كسان چې ستا پيروان او تابعان شوي دي؛ هغو هم ګرد ټول سره داسې خواران، غريبان، مفلسان او رذيلان دي چې له هغو سره مونږ شرفاء او غټان خپل ملاقات او خبرې كول شرم او ننګ بولو، نو آيا په ټولو انسانانو كې همدا ته پيدا شوى يې چې د الله تعالى د رسالت د منصب وړ او لايق وې؟ حال دا چې مونږ ستا په نسبت په حسب او نسب، مال او دولت، خَلق (پيدايښت) خُلق (رشه، خوى، عادت) او په نورو شيانو كې له هيڅ پلوه له تا څخه كم نه يو، نو ولې ځمونږ له منځه بل څوك پر دغه لوى منصب د رسالت باندې منتخب او غوره نشو؟ يا لږ تر لږه ستاسې تابعين او پيروان ښايي چې كوم معزز او لوى سړي خو وى.

دا د هغو ملعونانو د تقرير ما حصل وو، نوح عليه السلام كوم جواب چې دوى ته وركړى دى؛ دادى:

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ؕ اَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَاَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُوْنَ ۝

وويل (نوح) اى قومه ځما ! آيا وينئ خبر راكړئ تاسې (ماته) كه يم زه پر سمه لاره (واضح برهان ښكاره حجت) له ربه خپله، او راكړى يې وي ماته رحمت له نزده خپله، نو پټ كړى شوى

دی (حقیقت د دې دلیل) پر ستر ګو ستاسې، آیا مجبور کولی شو مونږ تاسې په قبول د هغو سره (بلکه نه شو) حال دا چې تاسې دغه (برهان) لره بد ګڼونکي انکار کوونکي یئ.

تفسیر: دا خبره صحیحه ده چې نبي له عامو انسانانو څخې ښایي بیخي ممتاز وي، لیکن هغه امتیاز په مال، دولت، حکومت، او نورو دنیوي شان او شوکت کې نه وي، بلکه په اعلی اخلاقو، ډېرو ښو ملکاتو، تقوی، د الله تعالی وېره، حق خوښول، له خلائقو سره همدردي او خواخوږي، او د صریحو او ښکاره وو آیتونو او نښو له وړاندې کولو څخه ورته امتیاز حاصل وي، چې حق تعالی هغه د بُرهان او د حجّت د اتمام او د نعمت د اکمال په ډول په هغو کې قائموي. یا د هغو په وسیله یې ښکاره کوي، نبي علیه السلام د الله تعالی د وحیې او د ربّاني دلائلو او براهینو په رڼا کې پر صافه سمه لاره درومي، او شپه او ورځ د الله تعالی خصوصي رحمتونه پرې لکه باران (وریا) ووري، نوح علیه السلام وویل: «که دغه ټول شیان په ما کې په ښکاره ډول سره موجود وی، او یقیناً موجود هم دي، لیکن همغسې چې ړوند د لمر رڼا نشي لیدلی؛ نو که ستاسې ستر ګې هم د الله تعالی د دې نور له لیدلو څخه قاصرې وي؛ نو آیا زه به په زور سره تاسې ته هغه نور او رحمت درښوولی شم؟ یا یې بالجبر پر تاسې اقرار کولی شم؟.

وَيَٰقَوْمِ لَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَى ٱللَّهِ ۚ وَمَآ أَنَا۠ بِطَارِدِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ ۚ إِنَّهُم مُّلَٰقُوا۟ رَبِّهِمْ وَلَٰكِنِّىٓ أَرَىٰكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُونَ ﴿٢٩﴾

او ای قومه څما ! نه غواړم زه له تاسې په دغه (تبلیغ) څه مال (مزدوري)، نه دی اجر (مزدوري) څما مګر په الله باندې، او نه یم زه شړونکی د هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (په وینا ستاسو، څکه چې) بېشکه دوی ملاقات کوونکي دي له ربه خپله سره، ولیکن زه ګورم تاسې داسې قوم چې جاهلان یئ (له عاقبته خپله او له شرف د دغو مؤمنانو).

تفسیر: یعني زه د تبلیغ په مقابل کې له تاسې څخه څه تنخوا او طلب نه غواړم، چې د مالي خود غرضی اندېښنه تاسې ته پیدا شي، زه د خپل الله خاص بنده او نوکر یم، او د ده له درباره ماته اجر راکول کیږي، الحمد لله زه نه ستاسې د مال طالب یم، او نه ورته ضرورت لرم، نو بیا به زه څرنګه فقراء او مساکین پر پرېږدم، او تاسې ته به خپل تمایل (میلان) درښکاره کوم؟ که تاسې زما اتباع تش د هغوی د افلاس یا عادي کارونو له سببه حقیر او ذلیل ګڼئ؛ نو ښه وپوهېږئ چې زه له هغو کسانو څخه نه یم چې د ایمان د دولت پانګې (سرمایه) لرونکو ته د دوی د ظاهري پرېشانۍ او بې وزلۍ (کمزورئ) لامله په سپکه وګورم، یا هغوی لکه د حیواناتو په شان ټېل وهم، او له خپله څانه یې لرې وشړم، دوی به یوه ورځ د خپل پاک الله په حضور کې مشرفیږي، او څما شکایت به د ده په دربار کې کوي، چې ستا رسول د متکبّرانو دنیادارانو په خاطر مونږ وفاداران غریبان یې له خپله حضوره لرې کړي وو، زه د ظاهري وضعیت په خلاف به څرنګه پوهېدی شم، چې د هغوی ایمان یوازې ظاهري او سطحي دی، د زړونو څېرول او د هغه لیدل څما کار نه دی، او د دغو امورو اطلاع او پته یوازې پاک الله سره ده، او هغه ښه پوهیږي چې د دوی د زړونو احوال څه دی؟.

وَيَٰقَوْمِ مَن يَنصُرُنِى مِنَ ٱللَّهِ إِن طَرَدتُّهُمْ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣٠﴾

او ای قومه څما ! څوک به مرسته وکړي له ما سره (چې ما وساتي) له عذابه د الله که وشړم زه دوی؟ (بلکه هیڅ یې نشي کولی)، آیا نو پند نه اخلئ تاسې.

تفسیر: یعني زه ستاسې له کبره او غروره او جهالته متأثر شوی څرنګه خپل نقصان وکړم؟ که ستاسې په رعایت زه د الله تعالی مخلصو بندګانو ته څه ووایم، یا یې وشړم، نو د هغه د سزا او له پوښتنې څخه به مې څوک ژغورلی (خلاصولی) شي؟.

وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِي خَزَآئِنُ ٱللَّهِ وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ وَلَآ أَقُولُ إِنِّي مَلَكٌ وَلَآ أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِيٓ أَعْيُنُكُمْ لَن يُؤْتِيَهُمُ ٱللَّهُ خَيْرًا ۖ ٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا فِيٓ أَنفُسِهِمْ ۖ إِنِّيٓ إِذًا لَّمِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٣١﴾

او نه وایم زه تاسو ته چې ما سره خزانې د الله دي، او نه (وایم دا چې) بېشکه زه پرښته یم، او نه وایم زه په حق د هغو (فقیرانو مؤمنانو کې) چې سپک ورته ګوري سترګې ستاسې؛ چې له سره به ورنه کړي دوی ته الله هیڅ خیر، الله ښه عالم دی په هغه (اخلاص) چې په نفسونو د دوی کې دی، (که زه دغه ووایم)؛ نو زه په دغه وخت کې خامخا له ظالمانو څخه به یم.

**تفسیر:** کفّارو نوح علیه السلام ته ویلي وو چې: «ته خو څمونږ په شان یو بشر یې، د قوت، قدرت، او دولت او اموال او رجال په اعتبار هم پر مونږ څه امتیاز نه لرې»؛ نو نوح علیه السلام د دې خبرې جواب په ډېر متانت او انصاف سره ورکړ چې: «بېشکه هغه امتیاز چې تاسو یې لیدل غواړئ زه یې مدعي نه یم، بلا شبهه زه خو یو بشر یم، پرښته نه یم، نه الله تعالی خپلې ټولې خزانې څما په تصرف او اختیار کې ایښې دي، او نه یې د غیب پر خبرو مطلع کړی یم، لیکن سره د دغو ټولو خبرو د اعتراف سره زه ستاسې په شان له سره داسې نشم ویلی؛ چې هغه خلق چې ستاسې په نظر کې معیوب او حقیر دي (یعنې زه او څما ملګري) هغوی ته به له سره پاک الله هیڅکله څه خیر او ښېګڼه (فائده) نشي ورکولی، مثلا له هغو څخه یې ځینو ته نبوت او حکمت عطا فرمایلی دی، او نور یې د ایمان او عرفان په دولت سره ګټور (نفع مند) کړي دي.

**تنبیه:** د دې آیت ابتدایي درې جملې په (۷) جزء د الأنعام د سورت په (۵۰) آیت (۴) رکوع کې تېرې شوې دي، د هغه ځای په تفاسیرو کې دې بیا ولوستلی شي.

قَالُوا۟ يَٰنُوحُ قَدْ جَٰدَلْتَنَا فَأَكْثَرْتَ جِدَٰلَنَا فَأْتِنَا بِمَا تَعِدُنَآ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٣٢﴾

وویل (کفارو) ای نوحه ! په تحقیق جګړه دې وکړه له مونږ سره پس ډېره دې کړه جګړه څمونږ؛ نو راوړه مونږ ته هغه عذاب چې وعده یې کوې ته له مونږ سره (یا ویروی مونږ په هغی سره) که یې ته له صادقانو (رښتیا ویونکو په دې وعید خپل کې).

**تفسیر:** نوح علیه السلام پخوا له طوفانه نهه سوه او پنځوس کاله په دوی کې شپه او ورځ په پټه او په ښکاره هغو ته پند او نصیحت کاوه، او د هرې شبهې ځواب یې ورکاوه، د تبلیغ، تفهیم، بحث، مناظرې، خبرو اترو سلسله جاري وه، په دغو جګړو کې په سلهاوو کلونه تېر شول، کفار د نوح علیه السلام د دغو حقاني مباحثو او د شپې او د ورځې ممانعت او مزاحمت څخه عاجز او تنګ شول، او ټولو سره وویل چې: اوس دغه سلسله رابنده کړه ! که په رښتیا سره ته رښتیا وایې؛ نو هغه عذاب ژر رانازل کړه ! چې مونږ د عذاب له نزول څخه تل وېروې ! څو دغه د هرې ورځې جګړه بیخي پای (آخر) ته ورسیږي، او دا مناقشه بالکل ختمه شي.

قَالَ إِنَّمَا يَأْتِيكُم بِهِ ٱللَّهُ إِن شَآءَ وَمَآ أَنتُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٣٣﴾

نو وویل نوح: بېشکه همدا خبره ده چې رابه ولي تاسې ته دا عذاب خاص الله که اراده وفرمایي، حال دا چې نه یئ تاسې عاجز کوونکي (د الله په دفع د عذاب په زور یا په تېښتې سره).

**تفسیر:** یعنې د دغه عذاب نزول څما په قبضه کې نه دی، څه مهال (وخت) چې پاک الله سم له خپله حکمت سره اراده وفرمایي؛ نو عذاب نازلوي، څما فرض یواځې خبرول دي، پاتې شو عذاب؛ هغه خو داسې هولناک او عظیم الشان شی

دی، چې د هغه راوړل، يا يې مخه ببرته آړول، دواړه د بشر له قوې خارج دي، كله چې الله تعالى مشيئت وفرمايي؛ نو څوک ترې نشي تښتېدلی، او نه ترې چېرې پټېدی شي، داسې څوک دي؟ چې (معاذ الله) پاک الله ستړی او ستومان کړي، او ځان ترې وژغوري (بچ کړي).

وَلَا يَنفَعُكُمْ نُصْحِىٓ إِنْ أَرَدتُّ أَنْ أَنصَحَ لَكُمْ إِن كَانَ ٱللَّهُ يُرِيدُ أَن يُغْوِيَكُمْ ۚ هُوَ رَبُّكُمْ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۳۴﴾

او نه نفع در رسوي تاسې ته نصيحت ځما كه اراده وكړم زه چې نصيحت وكړم تاسې ته كه وي الله چې اراده لري د دې چې گمراه وفرمايي تاسې، همدی دی رب ستاسې (هر څه چې غواړي هغه ستاسې سره كولی شي)، او خاص هم ده ته ببرته بيولی كېږئ (پس له مرگه په قيامت كې).

تفسير: يعني: كه زه هومره نصيحت او خير غوښتنه مو وكړم، او تاسې ته گټه (فائده) دررسونه وغواړم؛ له سره به هغه نافع او مؤثره نه لوېږي، ستاسې رب همغه ذات دی چې د هغه په ملكيت او تصرف كې هر شی دی، له هر چا سره چې هر معامله وفرمايي؛ هيڅوک يې مخه نشي نيولی، د ټولو رجوع او ورتگ د همده په لوري دی، همغه د ټولو اعمالو جزا او سزا وركوونكی دی.

أَمْ يَقُولُونَ ٱفْتَرَىٰهُ ۖ قُلْ إِنِ ٱفْتَرَيْتُهُۥ فَعَلَىَّ إِجْرَامِى وَأَنَا۠ بَرِىٓءٌ مِّمَّا تُجْرِمُونَ ﴿۳۵﴾

(وفرمايل الله) بلكه آيا وايي دوی چې له خپله ځانه يې جوړه كړې ده دغه (وحي)؛ ووايه (ای رسوله دوی ته) كه مې له ځانه كړي وي دغه وحي؛ نو خاص پر ما دی عقوبت د گناه ځما، او زه بېزاره يم له هغې گناه چې تاسې يې كوئ.

تفسير: دغه خبرې اترې د مكې معظمې د كفارو وې له پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم سره؛ چې دغه قرآن تاسې له خپله ځانه جوړ كړی دی، او د پاک الله كلام نه دی، نوح عليه السلام كتاب نه وو راوړی چې د نوح عليه السلام قوم داسې خبرې وكړي (كذا في الموضح).

ليكن ځينو مفسرينو دغه آيت هم د نوح عليه السلام د قصې جز ښوولی دی، يعنې د نوح عليه السلام قوم وويل: هغه خبرې چې نوح د الله تعالى په لوري منسوبوي، هغه يې له خپله ځانه تړلي دي.

ځينې وايي چې: دغه وينا خو د مكيانو ده له پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم سره، مگر د هغه تعلق خاص د نوح عليه السلام له قصې سره وو، گواكې هغوی ويل چې: دغه داستان تاسې په دروغو سره جوړ كړی دی، او په واقع كې په دغو قصو كې له سره حقيقت نشته، او اصل نه لري.

وَأُوحِىَ إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُۥ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ ءَامَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا۟ يَفْعَلُونَ ﴿۳۶﴾

او وحي كړی شوې وه نوح ته چې ببشكه شان دا دی؛ چې له سره به ايمان رانه وړي له قومه ستا مگر هغه چې په تحقيق ايمان يې راوړی دی (پخوا له دې نه)؛ نو مه غمجن كېږه په هغه (ايذاء او تكذيب) چې وو دوی چې كول به يې (او رسول يې درته).

تفسير: كله چې د قوم ايذاوې او تكليفونه له حده تېر شول، نوح عليه السلام د سلهاوو كلونو د تكليف تېرولو او جور او جفاء ليدلو څخه وروسته د پاک الله په دربار كې شكوی وفرمايله چې: ﴿أَنِّى مَغْلُوبٌ فَٱنتَصِرْ﴾ «زه مغلوب او ضعيف يم، ته له دوی نه زما بدل واخله !»، ارشاد وشو چې: د هغو څو شمېرليو غورو خلقو په قسمت كې چې ايمان ليكلی شوی وو، هغوی خو ټولو ايمان راوړ، وروسته له دې نه د دوی له منځه بل هيڅوک نه مسلمانېږي، نو ځكه اوس تاسې د

دوی له عداوت او تکذیب او ایذاء رسولو څخه زیات مه غمجن کېږئ، عنقریب د الله تعالی د انتقام توره راوځي، او د دوی دغو ټولو شرارتونو ته سره سره له دغو شریرانو خاتمه ورکوي.

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا ۚ إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ ﴿٣٧﴾

او جوړه کړه ته بېړۍ څمونږ د سترګو لاندې (چې وينو دې او حفاظت دې کوو)، او په حکم څمونږ، او مه کوه خبرې ما سره (په دفع د عذاب) په حق د هغو کسانو کې چې ظالمان (کافران) شوي دي، چې بېشکه په دوی باندې حکم کړی شوی د غرقېدلو (نجات يې نشته).

تفسير: حق تعالی نوح عليه السلام ته وفرمايل چې: څما د سترګو لاندې يعنې څمونږ په نګرانی کې او څمونږ د حکم، تعليم، الهام، او پيغام سره سم يوه بېړۍ تياره کړه !، ځکه چې عنقريب د اوبو يو ډېر سخت طوفان راتلونکی دی، چې په هغه کې دغه ټول ظالمين او مکذبين باليقين ډوبيږي، او د دوی په حق کې دغه حکم او فيصله حتماً او جزماً منطبقه کيدونکې ده، ته د هيڅ يو ظالم سپارش مه کوه ! او د دوی د شفاعت لپاره ماته مخ مه ګرځوه ! ځکه چې راتلونکی عذاب له سره منع کېدونکی نه دی، بلکه بيخي قطعي او حتمي دی.

وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّن قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ ۚ قَالَ إِن تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ ﴿٣٨﴾

او جوړوله (نوح) بېړۍ حال دا هر کله چې تېرېدله به پر دغه (نوح) ډله (د مشرکانو يا مشرانو) له قومه د نوح؛ نو مسخرې به يې کولې په دغه (نوح) پورې، نو وويل (نوح): که مسخرې کوئ تاسې پر مونږ پورې؛ نو بېشکه مونږ به هم مسخرې وکړو په تاسې پورې لکه چې اوس مسخرې کوئ تاسې (پر مونږ پورې).

تفسير: نوح عليه السلام به بېړۍ جوړوله نو کله چې به د ده قوم دغه عجيب شی (بېړۍ) ليدله؛ نو نوح عليه السلام څخه به يې پوښتنه کوله چې: «ته دغه څه جوړوې؟» ده به ويل چې: «يو داسې کور جوړوم چې د اوبو په سر به درومي، او له ډوبېدلو څخه به مونږ بچ کوي»، کفار به د دې خبرې له اورېدلو څنې له خندا شنه او په مسخرو کې به سره لګيا کېدل، او پخپلو منځونو کې به يې ويلې، چې دغه سپين ګيري ته وګورئ چې له اوبو څخه لرې په وچه لوړه (اوچته) ځمکه کې له اوبو څخه د نجات په فکر کې ډوب تللی دی.

شاه صاحب ليکي: «کفارو به خندل چې نوح عليه السلام په وچه ځمکه کې له ډوبيدلو څخه د نجات په فکر کې لوېدلی دی، نوح عليه السلام پر دوی باندې خندل، چې مرګ د دوی پر سر باندې ځوړند او ولاړ دی، او دوی ورته خاندي».

فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٩﴾

نو ژر به وپېژنئ تاسې هغه څوک چې رابه شي ورته (داسې) عذاب چې وبه شرموي ده لره په (غرق سره) او راکوزيږي به په ده عذاب دائم (په حرق سره).

تفسير: يعني اوس څه زيات تاخير نشته، او ژر تر ژره به درښکاره شي، چې د دنيا رسوا کوونکی او د آخرت دائمي عذاب پر چا نازليږي؟.

حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّوْرُ ۙ قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَاَهْلَكَ اِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ وَمَنْ اٰمَنَ ؕ وَمَآ اٰمَنَ مَعَهٗٓ اِلَّا قَلِيْلٌ ﴿۴۰﴾

تر هغه پورې چې راغی امر (حکم د عذاب) ځمونږ او راوخوټېده تنور (يعني اوبه له تناره، بيا چې عذاب سر راوړ نو) وويل مونږ (نوح ته) سواره کړه په دې بېړۍ کې له هرې (نوعې د حيواناتو څخه) جوړه دوه دوه (نر او ښځه)، او اهل خپل، مگر مه سوروه هغه چې ړومبی شوې ده په ده وينا (او حکم د ډوبېدلو) او هغه (هم سواره کړه) چې ايمان يې راوړی دی، او نه وو ايمان راوړی سره له دغه (نوح) مگر خو لږو خلقو.

تفسير: يعني نوح عليه السلام تر هغه وخته پورې د بېړۍ په جوړولو کې مشغول وو، چې د الله تعالی له وعدې سره موافق ټولو وړېځو ته حکم ورسېد، چې «ټولې سره ور وورېږئ، او ځمکې ته وويل شو: چې خپلې ټولې اوبه وخوټوه، او پرښتو ته وويل شو چې: تاسې د خپل تعذيب او نورو منصبي فرائضو په ځای راوړلو کې متوجه شئ !»، بالآخر له پاسه سخت بې دربغه باران وورېده، له ښکته د ځمکې له سطحې د زوررورو او سختو خوټېدونکو چينو او تندوبې (فوارې) په شانې په جوش وهلو او خوټېدلو باندې شروع وکړه، تر دې چې د ډوډۍ پخولو له تنورونو څخه هم چې له اور ځنې ډک پک وو، هم اوبه راووتې.

له ابن عباس رضي الله تعالى عنه څخه منقول دي، چې د «تنور» معنی وجه الأرض او د ځمکې مخ دی، مونږ پاس کوم تفسير چې کړی دی، همدغه معنی مو مقدمه ايښې ده، او د نورو معانيو په لورې مو هم اشاره کړې ده، حافظ ابن کثير (رحمه الله) د همدغه تفسير له ليکلو څخه وروسته فرمايي: «وهذا قول جمهور السلف وعلماء الخلف، والله أعلم».

﴿قُلْنَا احْمِلْ فِيْهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ﴾ يعني له هغو ساکښانو (زنده سرو) چې ضرورت ورته پښېږي، او د هغوی نسل پاتې کېدل مقدر دي، يوه يوه جوړه نر او ښځه دواړه واخله، او په بېړۍ کې يې سواره کړه !.

له ﴿وَلَا تُخَاطِبْنِيْ فِي الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا ۚ اِنَّهُمْ مُّغْرَقُوْنَ﴾ څخه مراد د نوح عليه السلام هغه ځوی مقصود دی، چې نوم يې (يام) او لقب يې کنعان وو، او بل د کنعان مور مقصوده ده، چې (واعله) نوميده، او د نوح عليه السلام له کورنۍ ځنې همدغه مور او ځوی دواړه بېل او په طوفان کې ډوب شوي دي.

﴿وَمَآ اٰمَنَ مَعَهٗٓ اِلَّا قَلِيْلٌ﴾ يعني اتيا نارينه يا څه لږ يا څه ډېر، د نوح عليه السلام د بېړۍ د اراکينو په نسبت ډېر اقوال دي، اما آخري دا دی، چې يو پخپله نوح عليه السلام وو، او يوه يې مسلمانه ښځه او درې يې ځامن: سام، حام، يافث او درې د دوی ښځې دا اته شو، او له قوم ځنې يې ۳۶ نارينه ۳۶ ښځې چې دا ټول سره اتيا تنه شول.

وَقَالَ ارْكَبُوْا فِيْهَا بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَا ؕ اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۴۱﴾

او وويل نوح چې: سپاره (سواره) شئ پر دغې (بېړۍ کې، او وايئ) په نامه د الله دي روانېدل د دې (بېړۍ) او درېدل د دې (بېړۍ)، بېشکه چې رب ځما خامخا ښه بخښونکی مغفرت کوونکی (د خطياتو)، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: نوح عليه السلام خپلو ملگرو ته وويل چې: د پاک الله په نامه پر بېړۍ سواره شئ ! او هيڅ فکر او انديښنه مه کوئ، د دغې بېړۍ راونبدل او درېدل دواړه د الله په نامه او اذن او حکم، او د ده د پاک نامه په برکت سره دي، او د دې د ډوبېدلو هيڅ انديښنه نشته، ځمونږ رب د مؤمنينو قصور معافوي، او پر دوی بې حده مهربان دی، دی به پخپل فضل

او کرم او مهرباني سره مونږ روغ رمټ او صحيح او سلامت راکوزوي، له دې آيت څخه دغه خبره استخراجيږي چې په کشتۍ او نورو نقليه وو وسائلو باندې د سورېدلو په وخت کې ښايي چې «بسم الله» وويلی شي.

وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ فِي مَوْجٍ كَالْجِبَالِ وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ يَا بُنَيَّ ارْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن مَّعَ الْكَافِرِينَ ﴿۴۲﴾

او دې (بېړۍ) به وړل دوی په موجونو (چپو د اوبو) کې په شان د غرونو، او نارې کړې نوح (له ډېره شفقته) ځوی خپل ته، حال دا چې وو هغه په کناره (له پلاره يا له بېړۍ نه): ای بچوړيه ځما ! راځه سور شه (په بېړۍ کې !) له مونږ سره، او مه کېږه له کافرانو سره (چې غرق به شې).

تفسير: يعني بېړۍ به د غرونو موجونه او چپې څيرولې، او پخپل تکر سره به يې وهلې، او بې له خوفه او خطرې به پرې روانه وه، وروسته له سورېدلو نوح عليه السلام خپل ځوی (يام ـ کنعان) ته ورغږ کړ، کوم چې له خپله پلاره او ورونړو او نورې کورنۍ څخه بېل او له کفارو سره ايل او غيل (ملګری) وو چې: «د دغو بد بختانو کفارو ملګرتوب پرېږده، له مونږ سره راشه ! څو له دغه لوی مصيبت څخه نجات ومونډلی شې».

قَالَ سَآوِي إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِي مِنَ الْمَاءِ ۚ قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ ۚ وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ ﴿۴۳﴾

وويل (کنعان ځوی د نوح چې) ژر به لاړ شم ځای به ونيسم پر سر د کوم غره باندې؛ چې وساتي مې له اوبو نه، وويل (نوح چې) نشته ساتونکی نن ورځ له امره (حکمه او له عذابه) د الله (هيڅوک) مګر (ساتلی به شي) هغه څوک چې رحم پرې وکړي (الله)، او پرده شو د دوی دواړو په منځ کې موج (چپه د اوبو) نو وګرځېد (کنعان) له جمله د غرق کړي شويو.

تفسير: «کنعان» له خپل جهل او غباوته اوس هم داسې خيال کاوه، لکه چې سرې د عادي او معمولي سيلاب (ځپان) په وخت کې پر کومه لوړه (اوچته) خيژي، او خپل ځان ژغوري (بچ کوي)، نو زه به هم پر کومې لوړې وخېژم، او خپل ژوندون به وساتم.

﴿قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ﴾ الآيه ـ يعني ته په کوم خبط او خطا کې لوېدلی يې، دغه عظيم طوفان خو کوم معمولي سيلاب نه، بلکه د الله تعالی د عذاب طوفان دی، د لوړو غرونو حقيقت او ماهيت څه دی، نن هيڅ يو شی د پاک الله له عذابه نجات نشي مونډلی، هو ! د همغه چا په برخه کې نجات کېدی شي، چې د پاک الله فضل او کرم پرې وي، مګر په دغه لويه او مهيبه هنګامه او انتقام په مقام کې به پر غټو مجرمانو څه رحم او شفقت کېدی شي؟ د پلار او ځوی په منځ کې لا د خبرو او اترو دغه سلسله پای (آخر) ته نه وه رسېدلې، چې د اوبو يوه لويه چپه ددوی تر منځ حائله شوه، او دوی دواړه يې د تل لپاره سره بېل کړل.

(بيا هر کله چې واقعه د طوفان نهايت ته ورسېده، او کفار غرق شول؛ نو د پاک الله داسې امر صادر شو).

وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ أَقْلِعِي وَغِيضَ الْمَاءُ وَقُضِيَ الْأَمْرُ وَاسْتَوَتْ عَلَى الْجُودِيِّ ۖ وَقِيلَ بُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿۴۴﴾

او وويل شو چې ای ځمکې جذب کړه (ښېرته ښکته ونغړه) اوبه خپلې، او ای اسمانه بندې کړه (اوبه خپلې)، او کمې کړی شوې اوبه (له مخ د ځمکې) او پوره کړ شو هغه حکم (د اهلاک د

اشرارو او انجاء د ابرارو)، او ودرېده بېړۍ پر غره د جودي، او وويل شو (هلاك) لرېوالی دې وي (له رحمته) قوم ظالمانو (كافرانو) ته.

تفسير: تر يوه مدت پورې دومره زياتې اوبه له آسمانه راتويې شوې، چې ګواكې د آسمان ګرد (ټول) ورخونه او بندونه سره خلاص شوي دي، او د ځمكې ټولې پولې او پردې سره شليدلې او ببرته شوي وې، تر ونو او لوړو (اوچتو) او غرونو پورې هم اوبه وختلې، او هغه ټول په كې ډوب او پټ شول، بې د كشتۍ له سورو څخه نورو ټولو كفارو ته چې د دوی په حق كې نوح عليه السلام د ﴿لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا﴾ (۲۹ جزء د نوح د سورت ۲۶ آيت دويمه ركوع) ښېرا كړې وه، غرق شول، په دغه وخت كې الله قدوس جلّت عظمته ځمكې ته امر وركړ، چې اوس دې خپلې اوبه ببرته درجذبې كړه، او دركش يې كړه !، او ای آسمانه نور بس كړه او مه وربړه ! او ای وربځو لرې شئ !، نو بيا څه مجال وو چې دغو ټولو د هغه حكم امتثال نه وی كړی، او په تعميل كې يې د يوې لمحې ډيل او معطلي كړې وی، لكه چې د اوبو وچېده شروع شول، او بېړۍ د (جودي) پر غره باندې ودرېده، چې د ځينو په نزد په (موصل) كې دی.

تنبيه: په دغې خبرې كې اختلاف دی، چې د نوح عليه السلام طوفان پر ګردې (ټولې) دنيا باندې ختلی وو؟ يا په خاصو ملكونو كې واقع شوی وو؟ د دې خبرې د فيصلې كولو ځای دلته نه دی، مګر په ياد ولرئ چې په «دائرة المعارف» كې د (اوروپا) د ځينو محققانو داسې اقوال او دلائل نقل شوي دي، چې له هغو څخه د عمومي طوفان د وقوع تأييد كيږي، هغه كسان چې د عمومي طوفان قائلان دي؛ له دوی څخه د اكثرو په نزد د موجوده عالم ګرد انسانان د نوح عليه السلام د دريو ځامنو (۱) سام (۲) حام (۳) يافث، له اولادې څخه دي، ﴿وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهُ هُمُ الْبَاقِينَ﴾.

وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ ﴿٤٥﴾ قَالَ يَا نُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ ۖ إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ ۖ فَلَا تَسْأَلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ ۖ إِنِّي أَعِظُكَ أَن تَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ ﴿٤٦﴾

او غږ (سوال) وكړ نوح رب خپل ته، نو ويې ويل: ای ربه ځما ببشكه چې ځوی ځما له اهله ځما څخه دی، او ببشكه چې وعده ستا حقه ده، او ته يې ښه عالم عادل لوی حاكم له ټولو حكم كوونكو څخه. وفرمايل (الله) ای نوحه ! ببشكه چې هغه ځوی نه دی له اهله ستا (چې مؤمنين دي)، ببشكه دی (خاوند د) عمل ناكاره دی، نو سوال مه كوه د هغه څيز چې نه وي تاته په هغه څيز كې څه علم، ببشكه زه پند دركوم تاته چې (نه) شې ته له جاهلانو (په دې ناجائز سوال سره).

تفسير: يعنې يا اله العالمينه ! تا خو ځما د كورنۍ د نجات وعده راسره كړې وه، او كنعان د مؤمن توب له امله د ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ﴾ په استثناء كې ظاهراً نه وو داخل، نو بيا د هغه د مغروقيت راز به څه وي؟ بلا شبهه ستا وعده حقه ده، هيڅا ته له سره داسې كوم خيال نشي پيدا كېدی چې (معاذ الله) تا وعده خلافي كړې ده، ته ﴿أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ﴾ او مطلق شهنشاه يې، كه څوك ستا د احكامو په راز وپوهيږي، او كه ونه پوهيږي؛ په دواړو صورتونو كې هغه حق دي، او هيڅوك حق نه لري، چې ستا د فيصلې په مقابل كې دم ووهلی شي، يا تا په وعده خلافۍ مجبور كړي، نه د چا دا منصب دی چې ستا د ناطق حكم په متعلق څه تنقيد وكړی شي، فقط د قلبي اطمينان لپاره د استعلام او استفسار په ډول د دغې واقعې راز معلومول غواړم.

ځواب يې داسې واورېد، چې دی ستا له هغې كورنۍ څخه نه وو، چې د دوی د نجات وعده درسره شوې وه، بلكه په ﴿إِلَّا مَن سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ﴾ كې شامل دی، ځكه چې د هغه عمل خراب دی، ته د ده له كفر او شرك څخه خبر نه

يې، د هغه سرېي واقعي احوال چې تاته نه وي معلوم؛ نو د هغه په باره کې له مونږه داسې نامناسبه رعايت، يا دا ډول کيفيت مه غواړه ! مقربينو ته وړ او لايق نه دي، چې بې له فکره او انديښنې، او وړاندې او وروسته کتلو، د جاهلانو په شان خبرې وکړي.

قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِكَ أَنۡ أَسۡـَٔلَكَ مَا لَيۡسَ لِي بِهِۦ عِلۡمٞۖ وَإِلَّا تَغۡفِرۡ لِي وَتَرۡحَمۡنِيٓ أَكُن مِّنَ ٱلۡخَٰسِرِينَ ۝٤٧

وويل (نوح) اى ربه څما ! بېشکه زه پناه نيسم په تا پورې له دې چې سوال وکړم له تانه د هغه څيز چې نشته ماته په هغه څيز علم پوهه، او که مغفرت ونه کړې ته ماته او رحم ونه کړې پر ما؛ نو شم به زه له زيانکارانو.

تفسير: شاه صاحب ليکي: «انسان د همغې خبرې پوښتنه کوي، چې ورته نه ده معلومه، ليکن ښايي چې د مسئول منه مرضي ځان ته معلومه کړي، دا ښه کار نه دی، چې د لوی مرضي ته نه ګوري، او ترې پوښتنه کوي»، مرضي يې ولې نه وه، هغه مو اوس وليکل، نوح عليه السلام د کبرياء په لوی دربار کې عرض وکړ، چې اى ربه څما ! بېشکه زه پناه نيسم په تا پورې، چې سوال وکړم له تانه د هغه څيز چې نشته ماته په هغه کې پوهه او علم، او که مغفرت ونه کړې ته ماته او رحم ونه کړې پر ما؛ نو شم به زه له زيانکارانو، يعنې نوح عليه السلام سخت ووېرېده او ډېر ورېږدېده (ورپېده)، او ژر يې توبه وويسته.

قِيلَ يَٰنُوحُ ٱهۡبِطۡ بِسَلَٰمٖ مِّنَّا وَبَرَكَٰتٍ عَلَيۡكَ وَعَلَىٰٓ أُمَمٖ مِّمَّن مَّعَكَۚ وَأُمَمٞ سَنُمَتِّعُهُمۡ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٞ ۝٤٨

وويل شو: اى نوحه ! کوز شه (له دې بېړۍ) سره له سلامتۍ له جانبه څمونږ، او سره له برکتونو (څمونږ له جانبه) پر تا او پر څو فرقو له هغه چا نه چې له تا سره دي، او څه نورې فرقې (کافرې له اولادې د هغه چا چې له تا سره دي) ژر به نفع ورکړو هغوی ته (په دې دنيا کې) بيا به ورسېږي دوی ته څمونږ له جانبه عذاب دردناک. (په آخرت کې په سبب د کفر).

تفسير: يعنې له بېړۍ څخه په «جودي» باندې بيا له «جودي» څخه پر ځمکه ښکته شول، برکات او سلامتي وروسته له دې نه پر تاسې او پر هغو اقوامو به وي؛ چې ستاسې له ملګرو څخه پيدا کيږي، اوس چې ځمکه د طوفان له سببه بيخي خرابه او ويجاړه شوې ده، الله تعالى به يې بيا ودانوي، او د هغه رونق سينګار ته به بيا عودت ورکوي، د ﴿بِسَلَٰمٖ﴾ په لفظ کې ګواکې حق تعالى تسلي فرمايلې ده چې بيا پر ګردو انساني نوعو پخوا له قيامت داسې عمومي هلاکت نه دی راتلونکی، مګر ځينې فرقې به هلاکيږي.

تِلۡكَ مِنۡ أَنۢبَآءِ ٱلۡغَيۡبِ نُوحِيهَآ إِلَيۡكَۖ مَا كُنتَ تَعۡلَمُهَآ أَنتَ وَلَا قَوۡمُكَ مِن قَبۡلِ هَٰذَاۖ فَٱصۡبِرۡۖ إِنَّ ٱلۡعَٰقِبَةَ لِلۡمُتَّقِينَ ۝٤٩

دغه (قصه د نوح) له ځينو اخبارونو د غيب ده، چې رالېږو هغه (اخبار) تاته (اى محمده ! په وحي سره)، نه وې ته چې پوهېدی په دې قصې ته او نه قوم ستا پخوا له دې (اخباره څمونږ)، نو صبر کوه (په ايذاء او تبليغ ته دې دوام ورکړه)، بېشکه چې عاقبت (ښه خاتمه) لپاره د پرهيزګارانو ده.

تفسير: يعنې دغه د نبوّت له دلائلو څخه دي، چې د يوه امي له ژبې څخه د سابقه وو اممو داسې مستند او مفصل واقعات درآوروي، همغسې چې د نوح عليه السلام او د ده د ملګرو خاتمه ښه شوه، ستاسې د ملګرو مستقبل هم ډېر روڼ او له

بري او کامیابي څخه ډک دی، تاسې د کفارو پر ایذاوو صبر وکړئ، مه ویرېږئ او مه خفه کېږئ لکه چې نوح علیه السلام نهه نیم سوه کاله صبر وکړ.

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ﴿٥٠﴾ يَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٥١﴾

او لیږلی وو مونږ قوم د عاد ته (قومي) ورور د دوی هود، وویل (هود): ای قومه څما! عبادت کوئ (یوازې) د الله (ځکه چې) نشته تاسې ته هیڅ بر حق معبود غیر له الله نه، نه یئ تاسې مګر دروغ تړونکي (پر الله پورې په دعوی د شرك کې). ای قومه څما! نه غواړم له تاسې پر دې تبلیغ د رسالت څه اجر (مزدوري)، نه دی اجر څما مګر پر هغه الله چې پیدا کړی یې یم زه، آیا نو عقل نه کوئ تاسې (چې حق له باطل او رښتین له دروغجن څخه بېل کړئ؟!).

وَيَا قَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُم مِّدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ﴿٥٢﴾

او ای قومه څما! مغفرت وغواړئ (له شرکه) له رب خپل، بیا رجوع وکړئ په طرف د دغه (الله په طاعت سره) چې وبه لیږي (الله له جانبه د) آسمان پر تاسې (باران) اوریدونکی (په شېبو شېبو)، او درزیات به کړي الله تاسې ته قوت پر قوت ستاسې، او مخ مه ګرځوئ تاسې حال دا چې ګناهګاران اوسېږئ.

تفسیر: د دغې جملې تفسیر د دغه سورت په ۳ آیت اوله رکوع یعنې په شروع کې تېر شوی دی، یعنې موقع په موقع ښه بارانونه اوروي، څرنګه چې دغه قوم له کښتونو (فصلونو) او باغونو او نورو شیونو سره ډېره مینه او علاقه درلوده؛ نو ځکه د ایمان راوړلو همغسې فوائد او برکات یې بیان فرمایلي دي، چې د دوی په حق کې په خصوصي ډول سره د تشویق او ترغیب موجب شي.

مفسرین لیکي چې: «دغه خلق له دریو کالو د وچکالۍ (سوکړې) او د باران د امساك په مصیبت اخته وو، هود علیه السلام وعده وکړه، که تاسې ایمان راوړئ، او د پاك الله دربار ته رجوع وکړئ؛ نو دغه مصیبت به له تاسې څخه لرې کیږي، او په راز راز نعمت، بخششونو او راحت به مخامخ کېږئ.

قَالُوا يَا هُودُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِي آلِهَتِنَا عَن قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿٥٣﴾

وویل دوی: ای هوده! نه دی راوړی تا مونږ ته دلیل ظاهر، او نه یو مونږ پرېښودونکي د (عبادت د) معبودانو خپلو په سبب د وینا ستا، او نه یو مونږ پر تا باندې ایمان راوړونکي.

تفسیر: یعنې دغه خو ښکاره ضد، عناد او سرکشي ده، چې دوی ویل، چې تاسې کوم واضح سند او دلیل د خپل صداقت په نسبت نه دی راوړی، هر هغه نبي چې د پاك الله له جانبه د نبوّت پر عهده فائز کیږي؛ نو ضرور دي چې د دغه تقریر لپاره کوم سند او اعتمادنامه ورته عطا کړي، لکه چې په حدیث کې دي: «د هر نبي الله سره چې مبعوث شوی دی؛ داسې واضحه نښه هم لېږلې شوې ده، چې که انسان پرې ایمان راوړي؛ راوړی یې شي»، نو ځکه یقیناً ویلی شي چې هود علیه السلام به هم هغه خپله نښانه وړاندې کړې وي، مګر دغو خلقو به د ضد، عناد، سروزورۍ او بې حیایۍ لامله هغه نه وي منلې.

إِن نَّقُولُ إِلَّا اعْتَرَاكَ بَعْضُ آلِهَتِنَا بِسُوءٍ ۗ قَالَ إِنِّي أُشْهِدُ اللَّهَ وَاشْهَدُوا أَنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾ مِن دُونِهِ ۖ
فَكِيدُونِي جَمِيعًا ثُمَّ لَا تُنظِرُونِ ﴿٥٥﴾ إِنِّي تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ رَبِّي وَرَبِّكُم ۚ مَّا مِن دَابَّةٍ إِلَّا هُوَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا ۚ
إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٥٦﴾

نه وايو مونږ (ستا په حق کې) مګر چې رسولې دي تا ته ځينو معبودانو ځمونږ څه ضرر (لېونتوب)، نو وويل هود: بېشکه زه شاهد کوم الله، او شاهدان شئ تاسې (هم) چې بېشکه زه بېزار يم له هغو چې شريکوئ يې (له الله سره). غير له الله نه، نو حيلې جوړې کړئ تاسې (هلاک) ځما ته ټول، بيا نو مهلت مه راکوئ ماته. بېشکه ما توکل کړی دی پر (هغه) الله چې رب ځما او رب ستاسې دی، نشته هيڅ تلونکی (ذي روح خوځېدونکی په ځمکه کې) مګر همدغه (الله) دی، نيوونکی له وچولي (تندي) د ده، بېشکه رب ځما په لاره سمه برابره (حق او عدل) دی (يا په حقې لارې سرې برابروي).

**تفسير:** يعني هغوی وويل: دغه چټي (بېکاره) خبرې چې ته يې کوې، او ګرد جهان بې وقوفه او ناپوهه بولې، او له خپله ځانه سره يې دښمنان کوې، ځمونږ خيال دا دی چې ځمونږ له معبودانو به کوم يوه څه رنځ يا ربړ (تکليف) درپېښ کړی وي، او له تا څخه يې لېونی، پاګل او مجنون جوړ کړی دی (العياذ بالله) ته چې د لېونيانو په شان خبرې کوې، او د هغوی له عبادت څخه مو منع کوئ او هغوی ته بدې او ردې خبرې کوې؛ نو هغوی تاته د دغو بې ادبو او سپين سترګيو او ګستاخيو په بدل کې سزا درکړې ده، چې اوس بيخي د لېونيانو په شان خبرې او اترې کوې.

نو هود عليه السلام د دغو مشرکانو په ځواب کې يوه خورا مؤثره ترديديه وينا وکړه، چې لنډه يې دا ده: هغه بېچارګان د تيږو (ګټو) او نورو شيانو بتان ماته څه ربړ او تکليف رارسولی شي، تاسې چې له ګردو څخه زورور، قوي، او طاقتور په نظر راځئ، که د خپلو معبودانو له فوجونو سره يو ځای پر ما يواځې يو سړي په پوره قوت، او قدرت ټول سره په يوه وخت کې ناڅاپه حمله او يرغل راوړئ؛ نو يقين وکړئ چې ځما يوه وېښته ته به هم څه نقصان او زيان ونشئ رسولی.

ځما اعتماد پر همغه (وحده لا شريک له الله) دی، چې ځما رب دی، او هغه هم ستاسې رب او حاکم دی، اګر که تاسې له بدفهمۍ څخه نشئ پوهېدی؛ چې نه يواځې زه او تاسې بلکه هر وړوکی او لوی شی چې په ځمکه کې ګرځي، او خوځيږي او شته، سره له آسمانونو او هغو شيانو چې په دوی کې دي او شته، ګرد د پاک الله په قبضه او تصرف کې دي.

نه ظالم او کاذب د ده له نيولو څخه خلاصېدی شي، او نه عادل صادق چې د ده په پناه کې اوسيږي رسوا کيږي، بلا شبهه ځما پروردګار د عدل او انصاف په سمه لاره دی، او د ده له لوري نه ظلم کيږي، او نه چا ته بې موقع انعام او اکرام ورکوي، خپلو بندګانو ته يې د نېکۍ او خير کومه لاره چې ښوولې ده؛ بېشکه پر هغې باندې له تلو څخه د الله تعالی په حضور رسيږي، او د دغې لارې د تلونکي د حفاظت لپاره دی هر وخت حاضر دی.

فَإِن تَوَلَّوْا فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ ۚ وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا ۚ إِنَّ رَبِّي
عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٥٧﴾

نو که مخ واړوئ تاسې (له ايمانه او کلک اوسئ په عصيان)؛ نو په تحقيق رسولی دی ما تاسې ته هغه پيغام چې رالېږلی شوی وم هغه سره تاسې ته (چې توحيد دی، نو هلاک به مو کړي الله) او

خليفه به وګرځوي رب ځما (رابه ولي ستاسې په ځاى) يو قوم غير له تاسې، او ضرر به ونه رسوئ تاسې الله ته د هيڅ څيز، بېشكه رب ځما پر هر څيز (د اعمالو ستاسې او نورو) ښه ساتونكى دى.

تفسير: يعنې سره له داسې صافې او ښكاره خبرې د آورېدلو كه بيا هم د الله تعالى وحدانيت او ځما رسالت نه منئ؛ نو ماته هيڅ يو ضرر او نقصان نشئ رسولى، ځكه چې ما خپل د تبليغ فرض پوره كړى دى، اوس نو تاسې د خپل ځان فكر وكړئ، ضرور دى چې د داسې عناد، ضد، او سرتمبګى (سركشى) او تعصب په مقابل كې له آسمانه پر تاسې عذاب نازل شي، او تاسې ګرد سره هلاک كړي.

وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَنَجَّيْنَٰهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿٥٨﴾

او كله چې راغى امر (حكم د عذاب) ځمونږ؛ نجات مو وركړ هود ته او هغو كسانو ته چې ايمان يې راوړى وو له ده سره (له هغه عذابه) په رحمت سره له نزده خپله (نه په عمل د دوى)، او نجات مو وركړ او وساتل مونږ دوى له عذاب سخته.

تفسير: يعنې اوه شپې او اته ورځې مسلسل سخته سيلى چلېده، لكه چې د «اعراف» په سورت كې مو ليكلي دي. كورونه يې ګرد سره ونړېدل، سقفونه (چتونه) پشتونه يې ټول والوتل، ونې له بېخه ووتلې، او ډېرې لرې لرې سره ولوېدلې، باد همداسې زهرناک او مسموم وو، چې د ساكښانو (جاندارو) په پوزه كې به داخلېده، او د لاندنې مخرجه د باندې ووت، او جسمونه به يې ټوټې ټوټې كول، له دغه هولناک عذابه مونږ هود عليه السلام او د ده ملګري چې په آخره كې تر څلورو زرو پورې رسېدلي وو؛ بېخي محفوظ وساتل، او د صالح عمل او د ايمان په بركت د آخرت له درانه عذابه مو هم هغوى وساتل، او نجات مو ور په برخه كړ.

وَتِلْكَ عَادٌ جَحَدُوا بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُۥ وَاتَّبَعُوٓا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٥٩﴾

او دغه عاديان دي، چې منكران شوي وو په آيتونو د رب خپل، او نافرماني كړې وه دوى له رسولانو د دغه (الله) او تابع شوي وو دوى د امر (حكم) د هر سركښه عناد والا.

تفسير: يعنې د دوى ورانو مېنو او كنډوالو ته د عبرت په ستركو وګوره ! چې د هغو عاديانو د هستوګنې ځاى دى، چې د دوى مشرانو په ډېر زور او شور له پاک الله سره مقابله كړې وه، او د ده د نبي عليه السلام له احكامو څخه يې سرونه غړولي وو، او د هغو كشرانو د دغو لويو شيطانانو متابعت وكړ، چې بالآخر دواړه تباه او برباد شول.

تنبيه: «رسله» ځكه وفرمايل، چې د يوه رسول تكذيب د ګردو رسولانو تكذيب دى، ځكه چې دوى ګرد په توحيد او نورو ديني اصولو كې سره متفق او يو د بل مصدق دي.

وَأُتْبِعُوا فِى هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَٰمَةِ ۗ أَلَآ إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ ﴿٦٠﴾

او ولېږلى شو (په دوى پسې) په دغې دنيا كې لعنت (چې هلاک كړ شول په سخت باد)، او په ورځ د قيامت كې (هم په اور كې سوځي)، خبردار شئ چې بېشكه عاديان كافران شوي وو په رب خپل، بيا واورئ خبردار شئ چې لرې والى دى (له رحمته د الله نه) عاد قوم د هود ته.

تفسير: يعنې د الله تعالى لعنت په دنيا كې په دوى پسې ګرځي، هر چېرې چې لاړ شي؛ هغه هم ورسره ځي، او تر قيامته پورې هر چېرې چې د هغوى ذكر وي، لعنت به هم ورسره وي، بلكه له قيامته وروسته هم هغه لعنت له دوى ځنې نه جلا كيږي، او د لعنت غاړكى به تل د دوى په غاړو كې لوېدلې وي.

ځینو مفسرینو ویلي دي: چې د قیامت په ورځ کې به داسې غږ کیږي: ﴿أَلَآ إِنَّ عَادًا كَفَرُوا﴾ الآیه ـ

تنبیه: له «عاد» سره د «قوم هود» لفظ یا خو د دې لامله وراضافه شوی دی، چې د دواړو تصور په یو ځای د اورېدونکو په دماغ کې راشي، یعنې د هود څه حال وو، او دا هم دهمغه قوم وو، چې حشر یې داسې شو.

او ممکن دی چې پر دې یې تنبیه ورکړې وي چې عاد دوه دي، یو اولَی او بل أُخرَی، نو ځکه یې په بل ځای کې فرمایلي دي: ﴿وَأَنَّهُ أَهْلَكَ عَادًا الْأُولَىٰ﴾ (۲۷ جزء د النجم سورت ۵۰ آیت ۳ رکوع)، دلته عاد اولَی مراد دي، چې د هغوی لپاره هود علیه السلام مبعوث شوی وو، او د هغو قصه د «الأعراف» سورت په ۹ رکوع ۸ جزء کې تېره شوې ده، والله أعلم.

﴿وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾﴾

او (لېږلی وو مونږ) ثمودیانو ته (قومي) ورور د دوی صالح، ویې ویل: ای قومه ځما ! عبادت کوئ (یوائې) د الله، نشته تاسې ته هیڅ بر حق معبود غیر له ده، همدغه (الله) پیدا کړي یئ تاسې له ځمکې (چې آدم یا ماده د نطفې ده) او اوږده عمرونه یې درکړي دي تاسې ته په دغې (ځمکې) کې؛ نو مغفرت وغواړئ له ده څخه (او په وحدانیت یې ومنئ)، بیا رجوع وکړئ ده ته (له عبادتونو د نورو)، بېشکه رب ځما ډېر نژدې دی (په رحمت او په فضل خپل سره) ښه قبلوونکی د دعا دی.

تفسیر: د دوی قصه هم په ۸ جزء د «الأعراف» په لسمه رکوع کې تېره شوې ده، یعنې ړومبی یې آدم له خاورې څخه پیدا کړ، بیا یې له ځمکې څخه اغذیه پیدا کړه، چې له هغو څخه نطفه او نور پیدا کیږي، او د انسان د پیدا کېدلو ماده ده.

﴿قَالُوا يَا صَالِحُ قَدْ كُنتَ فِينَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هَٰذَا ۖ أَتَنْهَانَا أَن نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا وَإِنَّنَا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ ﴿٦٢﴾﴾

وویل ثمودیانو: ای صالحه ! په تحقیق وې ته په مونږ کې امید کړی شوی پخوا له دې، آیا ته مو منع کوې له دې چې عبادت وکړو د هغو بتانو چې عبادت به یې کاوه پلرونو ځمونږ، او بېشکه مونږ خامخا په شک کې لوېدلي یو له هغه توحیده چې ته بولې مونږ هغه ته، داسې شک چې واقع کوونکی دی د زړونو په اضطراب کې.

تفسیر: یعنې له تا څخه ځمونږ هیله او امید داسې کېده، چې ته به په راتلونکې زمانې کې داسې لوی فاضل او ښه سړی کیږې، چې د معززو او مشرانو په ځای به ورسیږې، او د ملک او د قوم به د ستر گو تور وگرځې، د تا له وچولي (تندي) څخه رشد او صلاح آثار ښکارېدل، او د گردو توقع داسې کېده چې په قریب مستقبل کې به لویه فائده له تا څخې نورو ته راورسیږي، په تدبیر، صلاح او مشورې د خپلو وروڼو په لار ښوونه به بوخت (مشغول) کیږې، او د زړه په قوت سره د خپل پلارني مذهب په حمایت او تایید کې به کوشش کوې ! په رښتیا سره چې ابتداء تاته بت پرستي مبغوضه وه، او عمومي مذهب څخه بېل او جلا گرځېدې، خو بیا هم مونږ ستاسې په فطري قابلیت او طبعي پوهې اعتماد درلود، او هیله (امید) مو کوله چې وروسته د عقل د پوخوالي او د تجربې د زیاتوالي به ته دا خپله رویه پرېږدې، لیکن د افسوس ځای دی، چې تا یو په یو په داسې خبرو باندې شروع وکړه، چې د هغو په آورېدلو سره ځمونږ پر هغه گردو هیلو او

امیدونو د مایوسی اوبه توی شوې، ځمونږ په نزد د پخوانیو مشرانو په خلاف د داسې مسلك اختیارول سخت شبهه ناك ځیز دی، چې ځمونږ زړونه یې له سره نه مني.

قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كُنۡتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّىۡ وَاٰتٰٮنِىۡ مِنۡهُ رَحۡمَةً فَمَنۡ يَّنۡصُرُنِىۡ مِنَ اللّٰهِ اِنۡ عَصَيۡتُهٗ‌ فَمَا تَزِيۡدُوۡنَنِىۡ غَيۡرَ تَخۡسِيۡرٍ ﴿٦٣﴾

وویل (صالح) ای قومه ځما ! آیا وینئ تاسې، یعنې خبر راکړئ ماته که یم زه په (برهان) ښکاره له جانبه د رب خپل، او راکړی یې وي ماته له نزده خپله رحمت (نبوت)؛ نو څوك به مدد وکړي له ما سره (او خلاص به مې کړي) له عذابه د الله که نافرماني وکړم زه له ده نه، نو نه به زیاتوئ ماته غیر له نقصانه.

تفسیر: یعنې ستاسې د شك او د شبهې لامله زه یوه داسې صافه او سمه لاره څرنګه پرېښودی شم؟ !، پاك الله ماته عقل او پوهه راکړې ده، او پخپل عظیم رحمت سره یې د نبوت منصب را عطا کړی دی، اوس نو فرض کړئ؛ که زه د پاك الله له احکامو څخه سر وغړوم، او د هغو شیانو په تبلیغ او اعلام کې چې زه یې په رسولو سره مامور شوی یم؛ سستي وکړم، او ویې نه رسوم؛ نو ما به د هغه له سزا او پوښتنې څخه څوك وژغوري (بچ کړي)؟ که زه نافرماني وکړم له الله نه په نه رسولو د احکامو د ده کې.

او عجب دا چې زه بولم تاسې الله تعالی ته، او تاسې مې بولئ بتانو ته؛ نو نه زیاتوئ تاسې ماته غیر له نقصانه، یعنې د دې په ځای چې تاسې د خپل صادق خیر غوښتونکي او محسن قدر و پېژنئ، ماته داسې مشورې راکوئ، چې د خپل تبلیغ له فرائضو او د اسلامي دعوت له چارو څنې لاس واخلم، او له دې پلوه ما ته داسې لوی زیان وراسوئ چې تلافي یې له سره نه کیږي.

وَيٰقَوۡمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَـكُمۡ اٰيَةً فَذَرُوۡهَا تَاۡكُلۡ فِىۡۤ اَرۡضِ اللّٰهِ وَلَا تَمَسُّوۡهَا بِسُوۡٓءٍ فَيَاۡخُذَكُمۡ عَذَابٌ قَرِيۡبٌ ﴿٦٤﴾ فَعَقَرُوۡهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوۡا فِىۡ دَارِكُمۡ ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ‌ ؕ ذٰ لِكَ وَعۡدٌ غَيۡرُ مَكۡذُوۡبٍ ﴿٦٥﴾

او ای قومه ځما ! دا اوښه د الله ده (چې پیدا کړې یې ده) تاسې ته معجزه، نو پرېږدئ دا چې خوري (څري) په ځمکه د الله کې، او لاس مه وروړئ دې ته په بدۍ (او که مو بدي ورته اختیار کړه)؛ نو وبه نیسي تاسې عذاب نژدې (یعنې متصل په آزارولو د دې پسې). پس زخمي او مړه یې کړه هغه (اوښه)؛ نو وویل صالح: فائده واخلئ تاسې په کورونو خپلو کې درې ورځې، دا (راتګ د عذاب په څلورمې ورځې کې) داسې وعده ده، چې هیڅ دروغ په کې نشته.

تفسیر: له صالح علیه السلام څخه د ده قوم معجزه غوښتې وه، چې ده هغه وروښوده، د دې واقعې پوره تفصیل او د الفاظو تشریح د «الأعراف» په سورت د اتمې سپارې په خاتمه کې لیکلی شوی دی، هلته دې بیا وکتلی شي (٧٧ آیت (١٠) رکوع).

فَلَمَّا جَآءَ اَمۡرُنَا نَجَّيۡنَا صٰلِحًا وَّالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَعَهٗ بِرَحۡمَةٍ مِّنَّا وَمِنۡ خِزۡىِ يَوۡمِٮِٕذٍ‌ ؕ اِنَّ رَبَّكَ هُوَ الۡقَوِىُّ الۡعَزِيۡزُ ﴿٦٦﴾

بیا کله چې راغی امر (حکم عذاب) ځمونږ؛ نو نجات ورکړ مونږ صالح ته او هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی وو له ده سره په رحمت (او فضل) سره له نزده خپله (نه په عمل د دوی)،

او له رسوايۍ د دغې ورځې (يا د قيامت)، بېشکه رب ستا همدی دی قوي، ښه غالب (په انفاذ د احکامو او اهلاك د کافرانو).

تفسير: کله چې د عذاب حکم ورسېد؛ نو مونږ صالح عليه السلام ته نجات ورکړ، او له څه شي څخه مو نجات ورکړ؟ د هغې ورځې له رسوايۍ څخه، ﴿وَمِنْ خِزْيِ يَوْمِئِذٍ﴾ د ﴿نَجَّيْنَا﴾ شرح او تفصيل دی، يعنې د هر چا په نسبت چې اراده وفرمايي هلاکوي يې، او د هر چا په نسبت چې اراده وفرمايي ساتي يې.

وَأَخَذَ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِي دِيَارِهِمْ جَاثِمِينَ ﴿٦٧﴾ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا أَلَا إِنَّ ثَمُودَا كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِّثَمُودَ ﴿٦٨﴾

او ونيول هغو کسانو لره چې ظلم يې کړی وو پر ځانونو خپلو (په کفر سره) چغې (هيبتناکې د جبرئيل) بيا ګهيځ (سحر) وګرځېدل دوی په کورونو خپلو کې مړه وچ کلك پر ځنګنونو پرمخې پراته. لکه چې نه وو اوسيدلي دوی په دې کورونو کې (له سره)، واورئ ! خبردار شئ ! چې بېشکه ثموديان کافران شوي وو په رب خپل، واورئ خبردار شئ، لرې والی دی له رحمته ثموديانو ته.

تفسير: يعنې بې نامه او بې نبنانه شول، شاه صاحب ليکي: «پر دوی داسې عذاب راغی چې دوی د شپې ويده وو، چې پرښتې سخته چغه وکړه، چې د دوی ايني ځيګرونه وچاودل، په ځينو آيتونو کې د «رجفة» لفظ راغلی دی، يعنې په زلزلې او رېږدېدنې (رپېدنې) سره ووژلی شول، په اتم جزء د الأعراف د سورت په ۷۸ آيت کې (۱۰) رکوع کې مونږ د دې په متعلق د تطبيق صورت ليکلی دی.

وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ قَالُوا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ فَمَا لَبِثَ أَن جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴿٦٩﴾

او هرومرو (خامخا) په تحقيق راغلي وو رسولان ځمونږ (ملائک) ابراهيم ته په زيري (د ځوی او اهلاك د قوم د لوط)، نو وويل (ملائکو): سلام (آچوو پر تاسې په سلام آچولو سره)، وويل (ابراهيم): سلام (دې وي پر تاسې)، نو ځنډ يې ونه کړ چې رايې وړ (دوی ته) خسي وريت کړی شوی.

تفسير: «لوط» عليه السلام د ابراهيم عليه السلام د ترور ځوی وو، چې د ده په ملګرتوب يې له عراقه هجرت کړی وو، د پرښتو يوه ډله هم دغو دواړو ته ورلېږلې شوې وه، هغه بحث چې ابراهيم عليه السلام د لوط عليه السلام د قوم د هلاکت په مسئلې کې کړی دي، له دې نه وروسته راځي، دغو پرښتو د پيمخو او ښايستوو حسينو او جميلو هلکانو په شکل د لوط عليه السلام په لوري د تللو په وخت کې ابراهيم عليه السلام ته زېری او بشارت ورکړ، چې پاك جليل دی خپل دوست او خليل ګرځولی دی، او په دغه زوړتوب کې د بي بي ساري له ګېډې څخه هلك ورعطا کوونکی دی، او همدغه چې د لوط عليه السلام د قوم د شريرانو او ظالمانو له وجوده عنقريب به دغه دنيا پاکه کړه شي، چې د دوی په منځ کې د ابراهيم او لوط عليهما السلام متبعينو ته هيڅ قسم زيان او ضرر نه وررسيږي، پرښتو ابراهيم عليه السلام ته سلام واچاوه، او ده د هغو د سلام ځواب په سلام سره ورکړ، مګر په اوله شېبه (لحظه) کې ابراهيم عليه السلام دوی ونشو پېژندلی، لکه چې په ابتدايي حالت کې لوط عليه السلام هم دوی نه وو پيژندلي، ابراهيم عليه السلام پر دوی د انسانانو خيال وکړ، او د دوی د مېلمستيا سررشته (انتظام) يې هم وفرمايله، او يو ښه څربه او چاق خسی يې ورته حلال کړ، او وريته کړې غوښه يې ورحاضره کړه.

﴿فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ ۝٧٠﴾

نو كله چې وليده (ابراهيم) لاسونه د دوی چې نه رسيږي دغې (وريتې غوښې) ته، نو نااشنا يې وګڼل دوی، او په زړه کې يې راوسته له دوی نه وېره، وويل (ملائکو) چې: مه وېرېږه بېشکه چې مونږ لېږلي شوي يو قوم د لوط ته (چې هلاک يې کړو).

تفسير: د هغې زمانې له دود، (رواج) دستور سره موافق هغه مېلمه چې د خوراك د خوړلو څخه يې انکار کاوه، داسې ښکارېده چې ګواکې هغه د کوم ښه قصد لپاره نه دی راغلی، ابراهيم عليه السلام ووېرېده چې که دوی انسانان دي، نو له خوراك څخه د دوی انکار هرومرو کومه معنی او مقصد لري، او که ملائکې دي؛ نو نه دي رامعلوم چې د څه مطلب لپاره رالېږلي شوي دي؟ آيا له ما څخې کومه غلطي صادره شوې ده؟ يا څما د قوم لپاره يې کوم نامناسب شی راوړی دی؟ په دغو چرتونو او اندېښنو کې ده پخپلې ژبې داسې اظهار هم وفرمايه: ﴿إِنَّا مِنكُمْ وَجِلُونَ﴾ (۱۴ جزء د الحجر سورت (۵۲) آيت (۴) رکوع)، يعنې مونږ له تاسې څخې په اندېښنه کې لويدلي يو، عموماً مفسرينو د ابراهيم عليه السلام د خوف هم دغه توجيهات کړي دي.

﴿وَامْرَأَتُهُ قَائِمَةٌ فَضَحِكَتْ فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ وَمِن وَرَاءِ إِسْحَاقَ يَعْقُوبَ ۝٧١﴾

او ښځه د دغه (ابراهيم ساره) ولاړه وه، نو وېې خندل (په زوال د خوف يا هلاك د کفارو) نو زېری ورکړ مونږ هغې ته (په ژبې د ملائکو) په (تولد د) اسحاق، او بيا پس له اسحاق په (تولد د لمسي د ده) يعقوب.

تفسير: بي بي ساره رضي الله تعالى عنها چې د مېلمنو د خدمت کولو، يا د بل کوم کار لپاره هلته ګوښې (بېله) ولاړه وه، د دې وېرې د لرې کېدلو لامله خوشاله شوه او وېې خندل، الله تعالى پر دغې خوښی نورې خوشالی هم د پرښتو په ژبه ور واورولې، چې ته به هم دغه عمر کې د اسحاق عليه السلام په شان يو څوی مومې، او د ده له نسله يعقوب عليه السلام غوندې يو لمسی به هم درعطا شي، چې له هغه څخه يو زورور او لوی قوم (بني اسرائيل) پيدا کيدونکي دي، دغه زيري بي بي ساره ته څکه واوراوه شو؛ چې د ابراهيم عليه السلام يو بل څوی اسماعيل عليه السلام د بي بي هاجرې له ګېډې لا له پخوا موجود وو، د بي بي ساره همدغه تمنّا وه که چېرې زه هم د څوی مور شمه، مګر د زوړتوب له سببه بيخي بې هيلې (نااميده) او مايوسه شوې وه، نو دغه ده چې په دې مهال (وخت) کې يې داسې زېری واورېد، څينې علماوو د بي بي ساره د خندلو نور توجيهات هم کړي دي، مګر ظاهر خو همغه ده چې مونږ د هغه بيان پاس وکړ.

﴿قَالَتْ يَا وَيْلَتَىٰ أَأَلِدُ وَأَنَا عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِي شَيْخًا إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عَجِيبٌ ۝٧٢﴾

نو وويل (ساره) ای تعجّب څما ! آيا څېږومه زه (ولد) حال دا چې زه زړه يم، او دغه (ابراهيم) مېړه (خاوند) څما دی زوړ، بېشکه چې دغه (تولد له دوو زړو) يو شی دی ډېر عجيب (عادتاً نه قدرتاً).

تفسير: دلته ﴿يَا وَيْلَتَىٰ﴾ داسې يو لفظ دی، لکه چې څمونږ په محاورو کې ښځې د حيرت او استعجاب په مواردو کې «ويش» وايي، يعنې دا ډېر د حيرانۍ او تعجب ځای دی؛ چې زه په دغه زړوتيا کې وړوکی وڅېږوم، وايي چې د بي بي سارې رضي الله تعالى عنها عمر په دغه وخت کې د (۹۹) کلونو، او د ابراهيم عليه السلام عمر سل کاله يا له سلو کلونو څنې هم متجاوز وو.

قَالُوٓا أَتَعۡجَبِينَ مِنۡ أَمۡرِ ٱللَّهِۖ رَحۡمَتُ ٱللَّهِ وَبَرَكَٰتُهُۥ عَلَيۡكُمۡ أَهۡلَ ٱلۡبَيۡتِۚ إِنَّهُۥ حَمِيدٞ مَّجِيدٞ ۝٧٣

وويل دغو (ملائکو) آيا تعجب کوئ له امره (حکمه) د الله؟ رحمت د الله دې وي، او برکتونه د ده دې وي پر تاسې اى خاوندانو د کورونو، بېشکه چې الله ښه ستايلى شوى ښه لويي والا دى.

تفسير: يعني پر هغې کورنى باندې چې پاک الله دومره رحمتونه او برکات ورنازل کړي وي، او تل يې دوى د معجزاتو او خوارقو د ليدلو مورد ګرځولي وي، آيا دغه خبره هغوى لره د تعجب وړ (مستحق) او لايق کېدى شي؟ .

فَلَمَّا ذَهَبَ عَنۡ إِبۡرَٰهِيمَ ٱلرَّوۡعُ وَجَآءَتۡهُ ٱلۡبُشۡرَىٰ يُجَٰدِلُنَا فِي قَوۡمِ لُوطٍ ۝٧٤ إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّٰهٞ مُّنِيبٞ ۝٧٥ يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ إِنَّهُۥ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ عَذَابٌ غَيۡرُ مَرۡدُودٖ ۝٧٦

نو کله چې لاړه له ابراهيم څخه وېره او راغى ده ته زېرى (د ځوى او اهلاک د قوم د لوط)؛ نو بيا يې جګړه کوله ځمونږ سره په (حق) د قوم د لوط کې. بېشکه ابراهيم خامخا تحمل والا آه کوونکى لوى نرم زړه لرونکى رجوع کوونکى وو (الله ته). اى ابرهيم ! واوړه له دې جګړې څخه، بېشکه شان دا دى په تحقيق راغلى دى امر حکم د رب ستا (په اهلاک د قوم د لوط)، او بېشکه دوى راتلونکى دى دوى ته عذاب چې نشي بېرته ګرځولى (له دوى نه په هيڅ شان).

تفسير: يعنې څه مهال (وخت) چې له دې لوري مطمئن شو؛ نو فوراً د لوط عليه السلام د قوم په مسئله کې له پرښتو سره يې بحث شروع کړ، چې د هغه خلاصه د عنکبوت په سورت کې بيان فرمايلې ده؛ چې پرښتو ابراهيم عليه السلام مطلع کړ، چې مونږ د دغو کليو د اهلاک لپاره راغلي يو، ابراهيم عليه السلام وويل: چې په هغه کې خو پخپله لوط عليه السلام موجود دى، بيا د يوه نبي په موجوديت کې هغوى څرنګه وژلى کېدى شي؟ پرښتو وويل چې: مونږ پر ګردو هغو کسانو خبر کړى شوي يو چې هلته اوسيږي، لوط عليه السلام سره له متعلقينو خپلو له هغه ځايه لرې کولى شي، او وروسته له هغه عذاب نازليږي.

وَلَمَّا جَآءَتۡ رُسُلُنَا لُوطٗا سِيٓءَ بِهِمۡ وَضَاقَ بِهِمۡ ذَرۡعٗا وَقَالَ هَٰذَا يَوۡمٌ عَصِيبٞ ۝٧٧

او کله چې راغلل رسولان ځمونږ لوط ته (او د دوى ښايست يې وليد)؛ نو غمجن شو (لوط) په هغو او تنګه شوه په سبب د دوى سينه د ده (چې څه بې عزتي دوى ته ونه رسي)، او وويل لوط: دغه يوه ورځ ده ډېره سخته.

تفسير: دغه پرښتې د ډېرو حسينو او جميلو او د ډېرو ښکليو پيمخو هلکانو په شکل سره متشکلې شوې وې، په اول کې لوط عليه السلام دوى ونه پېژندلې چې پرښتې دي، بلکه د عادي ميلمنو په شان يې وګڼلې، له بل لوري د هغه قوم بې حيايي او بده رشه (عادت) او خراب اخلاقي يې هم ورښکاره وه، نو سخت غمجن او تنګ زړه شو، او په فکر کې ولوېد، چې دغه بدکاران او شريران ځما په دغو ميلمنو پسې هم رالويږي، او دوى به راڅخه بې عزته او بې پته کوي، د ميلمنو پربښودل هم ورته مشکل وو، او د دوى ژغورل (بچ کول) د دغو خبيثانو له لاسه هم ورته ګران ښکارېده، ګواکې د ګرد قوم د جنګ او جګړې د پېږودلو (اخيستلو) وخت ور د مخه شوى وو.

وَجَآءَهُۥ قَوۡمُهُۥ يُهۡرَعُونَ إِلَيۡهِ وَمِن قَبۡلُ كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ٱلسَّيِّـَٔاتِۚ قَالَ يَٰقَوۡمِ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِي هُنَّ أَطۡهَرُ لَكُمۡۖ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَلَا تُخۡزُونِ فِي ضَيۡفِيٓۖ أَلَيۡسَ مِنكُمۡ رَجُلٞ رَّشِيدٞ ۝٧٨

او راغی ده ته قوم د ده حال دا چې راځغاست يې ده ته (لپاره د بدکارۍ)، او پخوا له (دې نه هم) وو هغوی چې عملونه يې کول د ناکارو کارونو ! (نو چې دوی راورسېدل او طلب د مېلمنو يې وکړ) نو وويل لوط: ای قومه ځما ! دا ښځې لوڼې ځما دي (په نکاح يې واخلئ) چې دوی ښې پاکې دي تاسې ته، نو وويرېږئ له الله او مه رسوا کوئ ما پـه حق د مېلمنو ځما کې، آيا نشته له تاسې کوم سړی پوهنده (نېک کرداره چې تاسې ته پند درکړي).

تفسير: يعنې دغه قوم ته د هغو نامعقولو حرکاتو او خلاف الفطرتو فواحشو کوم عادت چې لوېدلی وو، هغه به دوی ته د آرام کېناستلو فرصت کله ورکولو، نو کله چې دوی د داسې پيمخو هلکانو له راتګه خبردار شول، په نهايتې بې حيايی سره د لوط عليه السلام کره په منډو منډو سره ځغلېدل، او په پوره قوت او شدت سره يې ترې مطالبه وکړه، چې دغه مېلمانه هلکان ورپرېږدي، ولې چې مونږ پخوا له دې نه تاته ويلي وو، چې ته به هيڅ يو نارينه خپل ځان کره مېلمه نشې ساتلی، هومره مېلمانه چې دلته راځي؛ هغه ګرد مونږ ته راپرېږده ! څو هر شی مو چې زړه غواړي همغه پرې وکړو !.

لوط عليه السلام د مېلمنو د پټ ساتلو لپاره هر راز کوښښ وکړ، او بالآخر دغه خبره يې هغو شهوت خوښوونکو ظالمانو ته وکړه: «ای ظالمانو ! دغه ځما جوني تاسې ته حاضرې دي، په نکاح سره يې اخيستی شئ، او په حلالې طريقې سره ترې متمتع کېدی شئ، چې دغه نهايت پاکيزه او ښکلې طريقه ده، او دا يې ورته ځکه وويل؛ چې د هر قوم نبي د هغوی د پلار په ځای وي، نو د هغوی جوني د هغه لورګانې حسابيږي، له الله تعالی څخه وېره پکار ده، او تاسو لره له سره دغه کار وړ (لايق) او مناسب نه دی، چې پاکه او مشروعه طريقه پرېږدئ، او په داسې خلاف الفطرت او چټلو (خرابو) کارونو کې ځانونه اخته کړئ ! لږ تر لږه ځما رعايت خو وکړئ ! چې زه د دغو مقدسو مېلمنو په مخ کې شرمنده او رسوا نشم، ځکه چې د مېلمه بې عزتي کټ مټ (هوبهو) د «کوربه» بې عزتي ده، آيا په تاسو کې يو سړی هم داسې نشته چې په داسې سمو سمو خبرو وپوهيږي، او د نېکې او تقوی لاره غوره کړي».

قَالُوا۟ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِى بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ ﴿٧٩﴾

وويل قوم د لوط هرومرو (خامخا) په تحقيق پوهه يې ته چې نشته مونږ لره په لوڼو ستا کې هيڅ حاجت، او بېشکه ته خامخا پوهېږې په هغه کار چې مونږ يې غواړو (چې لواطت دی).

قَالَ لَوْ أَنَّ لِى بِكُمْ قُوَّةً أَوْ ءَاوِىٓ إِلَىٰ رُكْنٍ شَدِيدٍ ﴿٨٠﴾

نو وويل لوط: کاشکې وی ماته پر تاسې زور يا مې پناه وړی شوی پناه ځای مستحکم ته.

تفسير: د لوط عليه السلام له ژبې څخه د انتهايي خوف او پريشانۍ په حالت کې بې له جوړولو او سنجولو (فکر کولو) څخه دغه الفاظ ووتل: «کاشکې په ما کې بالذات دومره قوت وی، چې له تاسې ګردو سره جنګېدم، يا کوم طاقتور او مضبوط پناه ورکوونکی مې لرلی»، يعنې ځما قوم او ټبر او خپل دلته وی.

په حديث کې نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: «يرحم الله لوطا لقد كان يأوي إلى ركن شديد» «الله تعالی دې پر لوط عليه السلام رحم وفرمايي، بېشکه چې هغه مضبوطه او مستحکمه پناه ځای ځانته حاصلوله»، يعنې «الله تعالی» مګر د لوط عليه السلام څخه وروسته هومره انبياء چې مبعوث شوي دي؛ هغوی ګرد د قوم قبيلې او د ټبر خاوندان وو.

قَالُوا يٰلُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَنْ يَصِلُوٓا إِلَيْكَ فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنْكُمْ
أَحَدٌ إِلَّا امْرَأَتَكَ ۖ إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَآ أَصَابَهُمْ ۚ إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴿٨١﴾

وويل ملائكو: اى لوطه ! بېشكه مونږ رسولان د رب ستا يو، له سره به ونه رسيږي دوى تاته (په ضرر)، نو بوځه اهل خپل (له دې ښاره) په يوې ټوټې د شپې کې، او نه دې ګوري بېرته له تاسې هيڅ يو، مګر (مه بيايه هغه) ښځه ستا (چې کافره ده)، بېشکه شان دا دى چې رسيدونکې دى دې ته هغه عذاب چې رسيږي دوى ته، بېشکه وعده د (نزول د عذاب پر) دوى صباح ده، آيا نه دى صباح نژدې (بلکه نژدې دى نو تلوار مه کوه !).

**تفسير:** کله چې د لوط عليه السلام غم، اندېښنه، اضطراب له حده تېر شو، نو دلته دغو مېلمنو پرې غږ وکړ، چې يا «نبي الله !» تاسې په څه فکر کې تللي يئ؟ مطلق مه پرېشانېږئ ! مونږ د الله تعالى رالېږلي شوي پرښتې يو، چې د دوى د اهلاک لپاره راغلي يو، دغه خبيثان څمونږ خو هيڅ شى نشي خرابولى، بلکه تاسې ته هم له سره هيڅ زيان او ضرر نشي در رسولى».

په تفاسيرو کې راغلي دي، کله چې دغو شريرانو ورونه او دروازې ماتې کړې، يا له دېواله واوښتل، او دننه د لوط عليه السلام انګړ ته ورغلل، نو دلته جبرئيل عليه السلام د پاک الله په حکم لوط عليه السلام له دوى څنې جدا کړ، او خپل مټ ته يې لږ څه د دوى په لوري حرکت ورکړ، چې د هغه په اثر ګرد سره ړانده شول، او په چغو سره يې وويل: «هله ژر وتښتئ ! چې د لوط عليه السلام دغه مېلمانه لوى جادوګران ښکاريږي».

کله چې لوط عليه السلام له ډېرې تنګدلى د عذاب د وخت د راتلو پوښتنه وکړه؛ نو جبرئيل عليه السلام ورته وويل چې: په تحقيق وخت د عذاب د دوى صباح دى، يعنې پر دوى سحر وختي عذاب راتلونکى دى، کله چې لږه شپه پاتې شي؛ نو ته سره له متعلقينو دې له دې ځايه تشريف يوسه، او خپلو ملګرو ته هدايت ورکړه ! چې په ډېر تلوار سره دې درومي، او هيڅ يو له دوى څنې دې بېرته مخ نه ګرځوي، او نه دې ګوري.

هو ! يواځې ستا ښځه دې له تا سره لاړه نشي، يا به بېرته مخ ګرځوي او ګوري به، او په دې ډول به په دغه عذاب کې اخته کيږي، چې په کې هغه ګرد قوم اخته کيدونکى دى.

وايي چې دغې ښځې خپل قوم د دغو مېلمنو په راتګ مطلع کړى وو، بيا لوط عليه السلام وويل چې: تر صباح پورې خو ډېر وخت دى، نو جبرئيل عليه السلام ورته وويل چې: «اى لوطه ! آيا نه دى صباح نژدې؟ بلکه نژدې دى ! يعنې خوشاله شئ !، اوس د دغو ظالمانو په هلاک کېدلو هيڅ دومره ځنډ نه دى پاتې، همدا چې صباح شو په ګهيځ (سحر وختي) کې دوى ګرد سره وژلى کيږي.

فَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّنْ سِجِّيلٍ مَّنْضُودٍ ﴿٨٢﴾ مُّسَوَّمَةً
عِنْدَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِيَ مِنَ الظّٰلِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴿٨٣﴾

نو څه وخت چې راغى (حکم، عذاب) څمونږ؛ نو وګرځولو مونږ پورته طرفه د دې (ښار) ښکته طرف ته (يعنې نسکور کړ مونږ پر دوى دا ښارونه) او واورول مونږ پر دغو ښارونو باندې کاڼي له خټو جوړ شوى په اور پاخه شوى لاندې باندې (پرله پسې). (داسې ګټې چې) نښې کړى شوې وې په نزد د رب ستا، او نه دى دا (کلى، او هم موده دهلاک ددوى) له ظالمانو (کافرانو) څخه لرې.

تفسير: يعنې جبرئيل عليه السلام دوی کلی پورته، او تر آسمانه پورې يې نژدې ورسول، او بيا يې له هغه ځايه چپه کړل، او په دغه ډول هغه ګرد کلي سره لاندې باندې شول، بيا د دوی د نکايت او ذلت او رسوايي د تکميل لپاره له پاسه پر دوی کرتکاني او تودې دوزخي تيږې (ګټې) هم ووروليی شوې، او هغه کسان هم پر هم دغو تيږو (ګټو) ووژل، چې له هغه ښارونو څخه د باندې په نورو ځايونو کې اوسېدل (والعياذ بالله).

تنبيه: د ﴿مَّنضُودٍ﴾ معنی محقّق شيخ الهند (رحمه الله) «لاندې باندې» سره کړې ده، ځينو يې معنی پی در پی او مسلسلې او پرله پسې د تيږو ورېدل اخيستي دي.

﴿مُّسَوَّمَةً﴾ يعنې کومه خاصه علامه او نښه پر هغو باندې وه، چې هغه يې له نورو تيږو څخه ممتازه او ښکاروله، چې دغه د الله تعالی د عـذاب تيږه ده، ځينې وايي چې پر هرې تيږې د هغه سړي نوم ليکلی وو، چې هغه پرې وژل کېده، او د هغه د اهلاک سبب ګرځېده، والله أعلم.

﴿وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ﴾ يعنې دغه د لوط د قوم واقعه د زمانې په اعتبار هم قريب دی، ځکه چې وروسته له «عاد» او د «نوح عليه السلام» له قوم څخه دغه واقعه پېښه شوې ده، او د مکان په اعتبار هم ځکه چې د دوی کلي د مدينې منورې او شام تر منځ وو، تېرېدونکو قافلو او جوپو به د هغوی ورانې او نړېدلې کورونه او کنډرې ليدلې.

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ وَلَا تَنقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ ۚ إِنِّي أَرَاكُم بِخَيْرٍ وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُّحِيطٍ ﴿۸۴﴾

او (لېږلی وو مونږ ښار) د مدين ته (قومي) ورور د دوی شُعيب، وويل (شعيب): ای قومه ځما عبادت وکړئ (يوائې) د الله، نشته تاسې لره هيڅ (بر حق) معبود بې له دغه (الله)، او مه کموئ پيمانه او تله، بېشکه چې زه وينمه تاسې په خير، او بېشکه زه ويرېږم پر تاسې (په سبب د دې خيانت) له عذابه د ورځې چاپېرېدونکې.

تفسير: دغه قصه په ۸او ۹ جزء د الأعراف د سورت ۱۱ رکوع کې پخوا هم تېره شوې ده، يعنې کله چې پاک الله تاسو ته فراغت او هوسايي (آرام) در عنايت کړی دی؛ نو ډېر وويرېږئ چې د عصيان او نافرمانی لامله هغه له تاسې څخه وانه خيسته شي، او دغه خوښي او خوشالي مو سلبه او دنيوي او اخروي عذاب درباندې مسلط نشي، ځکه چې تاسو ګرد په خير او عافيت يئ، او په پوره نعمت او دولت سره په راحت يئ، او له سره اهل د حاجت نه يئ، نو ولې داسې خيانت کوئ.

وَيَا قَوْمِ أَوْفُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ ۖ وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿۸۵﴾

او ای قومه ځما ! پوره ورکوئ تاسې پيمانه او تله په انصاف (عدل سره) او مه کموئ تاسې خلقو ته څيزونه (مالونه) د دوی، او مه لټوئ تاسې (خرابي) په ځمکه کې په دغه حال کې چې فساد کوونکي يئ.

تفسير: په ځمکه کې فساد مه کوی يعنې له شرکه او کفره يا له لږ پيمانې کولو او تللو څخه، يا په نورو ډولو (طريقو) د حقوقو له اتلافه او ظلمه او تېري او تجاوز په ځمکه کې فتنه او فساد مه آچوئ، او خرابي مه کوئ !.

بَقِيَّتُ اللّٰهِ خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ۚ وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ ﴿۸۶﴾

هغه باقي رزق پاتې کړی د الله خير ډېر غوره دی تاسې ته (له هغه چې تاسو يې ټولوئ په خيانت سره) که يئ تاسې مؤمنان (باور کوونکي په خبره څما)، او نه يم زه پر تاسو ډېر ساتونکی (له منهياتو).

تفسير: يوه ايماندار انسان ته د پاک الله هغه ورکړی شوی مال چې وروسته د پوره او کامل اداء کولو د حقوقو (په حلال صورت) سره پاتې وي، اګر که لږ هم وي؛ له هغه کثير څخه بهتر دی، چې د حرامو په طريقه حاصليږي، يا په کې د نورو خلقو حقوق تلف کيږي، د حلالو په اموالو کې چې په ښه ډول سره پيمانه او وتلل شي، سمدلاسه برکت پيدا کيږي، او د پاک الله له درباره اجر وررسيږي.

قَالُوْا يٰشُعَيْبُ اَصَلٰوتُكَ تَاْمُرُكَ اَنْ نَّتْرُكَ مَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُنَآ اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِيْٓ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا ؕ اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِيْمُ الرَّشِيْدُ ﴿۸۷﴾

نو وويل قوم د ده ای شُعيبه ! آيا دغه ډېر لمونځ کول ستا (دربنيي) امر کوي تاته په دې چې پرېږدو مونږ هغه بتان چې عبادت به کاوه (د هغو) پلرونو څمونږ، يا (په دې امر کوي چې پرېږدو مونږ) دا چې وکړو مونږ په اموالو خپلو هغه تصرف چې غواړو يې (د ډېر اخيستلو او لږ ورکولو)، بېشکه ته خامخا هم ته يې لوی باوقاره سم په لاره (نېک کرداره).

تفسير: دغه خبرې يې د استهزاء او تمسخر په ډول کولې، چې «بس کړه صاحبه ! زيات له دې نه مه مشر کېږه ! آيا په ګرد قوم کې همدا يواځې ته لوی عقلمن باوقاره نېک کردار يې؟ او باقي مونږ او څمونږ مشران ګرد جاهلان او احمقان دي؟»، شُعيب عليه السلام ډېر زيات لمونځ کاوه، نو دوی ورته وويل چې: «ښايي ستا دغه ډېر لمونځ کول تاته داسې حکم درکوي چې له مونږ څخه څمونږ د پلرونو او نيکونو دين پردی کړې، او څمونږ د ملکيت اختيار څمونږ په مملوکه وو مالونو کې لرې کړې، بس ته دې خپل لمونځ کوه، او څمونږ په ديني او دنياوي معاملاتو وزن او کيل او تللو کې ستا د مداخلې هيڅ ضرورت له سره نشته».

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا ؕ وَمَآ اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَآ اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ ؕ اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ ؕ وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ؕ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ ﴿۸۸﴾

وويل شُعيب: ای قومه څما ! آيا وينئ تاسې (خبر راکړئ ماته) که يم زه په برهان (واضح بيان) له جانبه د رب خپل، او راکړی يې وي ماته له درباره خپله رزق روزي ښايسته نېکه، او نه لرم اراده د دې چې مخالفت وکړم له تاسې (او راشم) هغه کار ته چې منع کوم تاسې له هغه کاره، اراده نه لرم زه مګر د اصلاح (ستاسې) څو چې توان کيږي څما، او نه دی توفيق څما (په اصلاح ستاسې کې) مګر په (هدايت نصرت د) الله، خاص پر همدغه الله توکل کړی دی ما، او د همده په طرف رجُوع کوم.

تفسير: يا خو ظاهري روزي مراده ده، يعني بې د پيمانې او د تلې، وزن د تزييد او تنقيصه په حلالې طريقې سره يې روزي عطا کړېده، يا باطني روزي مقصوده ده، يعني علم او حکمت او نبوت يې عطا کړی دی، خلاصه يې دا ده که

ماته حق تعالی فهم او بصیرت راکړی وي، او داسې سمه صافه لاره يې راښوولې وي، چې تاسې يې نشئ ليدلی. او په دولت او شته والي يې موړ کړی يم، چې له هغه څنې تاسې بې برخې يئ، نو آيا د هغه حق دا دی چې معاذ الله زه ستاسې پشان ړوند شم، او د الله تعالی له احکامو څخه مخ واړوم، يا ستاسې له دغې استهزاء او تمسخر (ټوکې ټکالې) څخه وويرېږم، او پند ورکول او پوهول پرېږدم، زه به له سره داسې نه کوم.

﴿وَمَآ أُرِيدُ أَنْ أُخَالِفَكُمْ إِلَىٰ مَآ أَنْهَىٰكُمْ عَنْهُ﴾ يعنې د دې لپاره ترې تاسو نه منع کوم، چې ګوندې زه پخپله يې وکړمه، يا له هغو خرابو کارونو څخه چې زه تاسې منع کوم، زه له سره نه غواړم چې ځان له تاسې څنې بېل کړم، او پخپله د هغه مرتکب شم، مثلا تاسې تارك الدنيا وګرځوم، او زه پخپله مال او دولت راټول کړم، نه هغه پند او نصيحت چې زه يې تاسې ته کوم، زه له تاسو څخه لا ړومبی د هغو په تعميل کې مشغول او لګيا يم، تاسې دغه الزام پر ما باندې نشئ اړولی، چې ځما پند پر ځان غوښتنه يا هوا او هوس محمول کړئ.

﴿إِنْ أُرِيدُ إِلَّا ٱلْإِصْلَٰحَ مَا ٱسْتَطَعْتُ﴾ الآيه ـ يعنې ځما زياتر کوښښ دا دی چې ستاسې ديني او دنيوي حالت ښه شي، او اصلاح ومومي، او دغه موجوده خراب حالت مو لرې شي، او د ايمان او عرفان په لوړه (اوچته) د ختلو کوښښ وکړئ، پرته (علاوه) له دغه اصلاح له مقصده بل کوم مطلب نه لرم، چې زه مې خپل دغه مرام تر خپل مقدور او استطاعت پورې په هيڅ يو حالت کې له سره نشم پرېښودی، پاتې شوه دغه خبره چې ځما دغه مقصد تر پايه (آخره) هم ورسيږي، او زه په دغه کوښښ کې بريالی هم شم، دغه ګرد د قدوس الله په قبضه او واک کې دي، او د پاك الله په امداد او توفيق سره ګرد کارونه سر ته رسېدی شي، ځما اعتماد او توکل پر همغه پاك الله دی، او په هرې معاملې کې هغه ته رجوع کوم.

وَيَٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِىٓ أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَٰلِحٍ ۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾

او ای قومه ځما! باعث دې نه کړي تاسې لره دښمني (ستاسې) ما لره دا خبره چې ورسيږي تاسې ته په شان د هغه (عذاب) چې رسېدلی وو قوم د نوح ته (چې غرقېدل وو) يا قوم د هود ته (چې سخت باد وو) يا قوم د صالح ته (چې زلزله وه)، او نه دی قوم د لوط له تاسې څخه (ای کفارو دومره) لرې (په زمان مکان نو پرې عبرت واخلئ).

تفسير: يعنې ځما د ضد، عناد او عداوت په جوش کې داسې حرکات مه کوئ، چې تاسې د هغه په سبب د تېرو اقوامو پشان د ډېرو سختو عذابونو وړ (لائق) او مستحق شئ! د نوح، هود، او صالح عليهم السلام پر امتونو د تکذيب او عداوت لامله هغه عذاب چې نازل شوی دی، هر چاته ښکاره دی، د لوط عليه السلام د قوم قصه خو له دغو ګردو څخه وروسته په هم دغې نژدې زمانې کې واقع شوې ده، او د هغې ياد به ستاسې په حافظه کې موجود وي، نو دغه نظائر له سره مه هېروئ.

يعنې که تاسې د نوح او د هود او د صالح عليهم السلام د قوم له تعذيب څخه په سبب د لرې والي د زمانې عبرت نشئ اخيستی؛ نو نه دی قوم د لوط له تاسې لرې، نه په زمان سره، نه په مکان سره، نو په هغه خو خامخا عبرت واخلئ!.

وَٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوٓا۟ إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّى رَحِيمٌ وَدُودٌ ﴿٩٠﴾

او مغفرت وغواړئ تاسې له رب خپل (په راوړلو د ايمان سره) بيا رجوع وکړئ تاسې په طرف د ده (په خصوص او خلوص د عبادت سره) بېشکه رب ځما ډېر مهربان دی، محبت کوونکی دی.

تفسير: هومره چې قديمي او په هره اندازه چې سخت مجرم او لوی ګناهګار هم وي، کله چې دی د زړه په صدق او اخلاص سره د الله دربار ته رجوع وکړي، او معافي بخښنه وغواړي؛ نو يې پخپل فضل او کرم سره بخښي، بلکه له ده سره مينه او محبت هم کوي.

قَالُوا يٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِّمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرٰىكَ فِينَا ضَعِيفًا ۖ وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ ۖ وَمَآ أَنتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ ﴿٩١﴾

وويل قوم (د ده په ځواب کې): ای شعيبه ! نه پوهيږو مونږ په ډېرو هغو خبرو چې ته يې وايې (مونږ ته د توحيد په تعريف او منع د تطفيف)، او بېشکه مونږ خامخا وينو تا پـه مونږ کې کمزوره، او که نه وي دغه خپلوان ستا (چې په کفر کې له مونږ سره شريکان دي)؛ نو خامخا سنګسار کړی به وی مونږ ته، او نه يې ته پر مونږ هيڅ قدر عزتناک.

تفسير: دوی خو پر ګردو شيانو ډېره ښه پوهېدل، ليکن د ضد، عناد او حق پټولو لامله به يې داسې خبرې کولې، چې مونږ پر دغو خبرو له سره نه پوهيږو، چې ته څه وايې، او د مجذوبانو په شان تل ګړېږې، (العياذ بالله)، او که په رښتيا سره دوی په همغې سمې صافې خبرې باندې له خپلې بې توجهی يا د غباوت له وجې نه پوهېدل، نو دغه کلام به په خپل ظاهر باندې محمولېده.

﴿وَإِنَّا لَنَرٰىكَ فِينَا ضَعِيفًا﴾ يعنې يو کمزور او بې حقيقته سړي ته نه ښايي چې ګرد عالم له خپل ځان سره دښمن کړي، بلکه ورته لازم دي، چې پر خپل حال باندې رحم وکړي، او خپل هوسا (آرام) ځان په ربړو (تکليفونو) اخته نه کړي، او په لوی لاس خپل ځان د مرګ په خوله کې ونه غورځوي، چې هيڅ يوه فائده او ګټه (منافع) ورته نه رسوي.

﴿وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ﴾ يعنې که ستا د کورنۍ او د ټبر خلقو لحاظ او خاطر نه وی چې له مونږ سره اوسيږي؛ نو لا له پخوا څخه به مو ته سنګسار کړی وې.

قَالَ يٰقَوْمِ أَرَهْطِىٓ أَعَزُّ عَلَيْكُم مِّنَ اللّٰهِ وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ إِنَّ رَبِّى بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٩٢﴾

وويل (شُعيب) ای قومه ځما ! آيا دغه خپلوان ځما ډېر عزيز (محخور) دي پر تاسې له الله، او ګرځولی مو دی دغه (الله) وروسته ستاسې شاته غورځولی شوی (چې هيڅ پروا يې نه کوئ)، بېشکه رب ځما پر هغو کارونو چې کوئ يې تاسې ښه احاطه کوونکی دی (نو جزاء د ټولو به درکړي).

تفسير: يعنې د افسوس او تعجب ځای دی، چې ځما د کورنۍ له سببه مې د رعايت وړ او مستحق بولئ، مګر د دې لامله مې هيڅ لحاظ او خاطر نه کوئ، چې زه د پاک الله نبي او تاسې ته درلېږلی شوی يم، او صاف او صريح دلائل او نښې د خپل تصديق لپاره درښيم، ګواکې ستاسې په سترګو کې ځما د کورنۍ عزت، قوت، قدرت او نور له الله قدّوس څخه زيات دی، او د پاک الله عظمت او جلال مو داسې هېر کړی دی، چې په تصور کې مو هم له سره نه راځي.

وَيٰقَوْمِ اعْمَلُوا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ إِنِّى عٰمِلٌ ۖ سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَمَنْ هُوَ كٰذِبٌ ۖ وَارْتَقِبُوٓا إِنِّى مَعَكُمْ رَقِيبٌ ﴿٩٣﴾

او ای قومه ځما ! عمل کوئ په ځای خپل (يعنې په حالت خپل چې شرک او معصيت دی) چې بېشکه زه هم عمل کوونکی يم په حال خپل (چې توحيد او طاعت دی)، ژر به وپېژنئ تاسې هغه

ځوک چې راځي ده ته عذاب چې رسوا کوي هغه، او (وبه پېژنئ) هغه ځوک چې دروغ ویونکي دي، او انتظار کوئ (د عاقبت خپل) بېشکه زه هم له تاسې سره انتظار کوونکی یم د عاقبت خپل.

وَلَمَّا جَآءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا شُعَيْبًا وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُۥ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا وَأَخَذَتِ الَّذِينَ ظَلَمُوا الصَّيْحَةُ فَأَصْبَحُوا فِى دِيَٰرِهِمْ جَٰثِمِينَ ﴿٩٤﴾ كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَآ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ ﴿٩٥﴾

او کله چې راغی امر (حکم، عذاب) ځمونږ؛ نو خلاص کړ مونږ شُعیب او هغه کسان چې ایمان یې راوړی وو له ده سره (له دغه عذابه) په رحمت سره له نزده خپله، او ونیول هغه کسان چې ظلم یې کړی وو (په کفر سره) غږ سخت؛ نو ګهیځ (سحر وختي) وګرځېدل دوی په کورونو خپلو کې مړه وچ کلک پراته پر زنګنونو خپلو، (داسې تباه شول) لکه چې نه وو اوسېدلي په دغو کورونو کې (پخوا له دې نه)، خبردار شئ! واورئ! لرې والی دی (له رحمته او هلاک دی قوم د) مدین ته، لکه چې لرې او هلاک شول ثمودیان.

تفسیر: دلته د شُعیب علیه السلام د قوم په «صیحة» (سخته چغه) سره هلاکېدل مذکور دي، او په «الأعراف» کې د «رجفة» لفظ راغلی دی، یعني په زلزلې سره وژلی شوي دي، او د «الشعراء» په سورت کې «عذاب یوم الظلة» راغلی دی، چې مطلب یې دا دی د عذاب وربځ لکه سایوان پر دوی محیطه شوې وه.

ابن کثیر (رحمه الله) لیکي چې: «دغه درې واړه عذابونه د دې قوم په حق کې سره جمع شوي وو، بیا په هر سورت کې دهغه ځای د سیاق سره مناسب عذاب ذکر شوی دی.

په «الأعراف» کې وو چې هغو خلقو چې شُعیب علیه السلام ته وویل چې: مونږ تاسې او ستاسې ملګري له دغې خپلې ځمکې ځخه وباسو نو هلته یې دروبنوده، چې له هغې ځمکې ځخه چې تاسې مسلمانان ترې وباسئ؛ د همغې ځمکې د زلزلې له اثره به ووژلی شئ، کله چې دلته د هغو د سختو بې ادبيو مقالاتو ذکر دی، نو ځکه یې د هغه په مقابل کې د آسمان «صیحې» یعنې سختې چغې ذکر وفرمایه، ګواکې د الله تعالی د عذاب د یوې چغې کې د هغو ټول شورماشور او وینا وې ورکې شوې، د «الشعراء» په سورت کې یې د دوی دغه قول نقل کړی دی: ﴿فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ إِن كُنتَ مِنَ الصَّٰدِقِينَ﴾ یعني که ته رښتینی یې؛ نو پر مونږ د آسمان یوه ټوټه راغورځوه! نو د هغه په مقابل کې د «عذاب یوم الظلة» تذکره وفرمایله شوه.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِـَٔايَٰتِنَا وَسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴿٩٦﴾ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِي۟هِۦ فَٱتَّبَعُوٓا۟ أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَآ أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ﴿٩٧﴾

او خامخا په تحقیق لېږلی وو مونږ موسی (په ښکاره) معجزو خپلو سره او په برهان (قاطع حجّت) واضح سره. فرعون او مشرانو د (قوم د) ده ته، او متابعت وکړ دغو (مشرانو) دامر (حکم) د فرعون، حال دا چې نه وو حکم د فرعون برابروونکی په سمې لارې.

تفسیر: له نښو ځخه غالبا معجزات او هغه (۹) نښې مرادې دي چې د هغو ذکر په ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ تِسْعَ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ﴾ کې شوی دی، د هغو له منځه د «عصا» معجزه یې چې نهایته ظاهره او قاهره معجزه وه شاید «سلطان مبین» یعنې واضح سند فرمایلې وي، یا له «سلطن مبین» ځخه هغه روښانه دلائل مراد دي، چې موسی علیه السلام هغه د فرعون په مخ کې د الله تعالی د وجود او توحید او نورو په متعلق وړاندې کړي وو، چې د هغو ذکر په نورو مقاماتو کې راځي، او ممکن دی چې له «سلطان مبین» ځخه د هغه لغوي معنی مراد وي، یعنې ښکاره بری یا ظاهره غلبه، ځکه چې د فرعونیانو په مقابل

کې موسی علیه السلام ته ظاهره غلبه او فتح مبین څو څو کرته حاصله شوې ده، یعني سره د ښکاره او واضحو نښو له لیدلو څخه بیا هم فرعونیان د الله تعالی د نبي علیه السلام خبره وانه وربېده، او همغه الله د دښمن فرعون پر حکم به یې تګ او عمل کاوه، حال دا چې د فرعون هیڅ یوه خبره داسې جوته او صحیحه نه ده، چې د هغې په قبلولو سره انسان نېکي او ښېګڼه (فائده) حاصله کړی شي.

يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ ۖ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ ﴿٩٨﴾

مخکې به شي (دغه فرعون) د قوم خپل نه په ورځ د قیامت کې، نو ننه به باسي هغوی په اور کې، او بد ځای د ورتلو (د دوی هغه) دی چې وروستل شي دوی.

تفسیر: یعنې همغسې چې فرعون دلته په کفر او تکذیب کې د دوی امام او قائد وو، په قیامت کې به هم د هغو امام او قائد وي، هغو خلقو چې په دنیا کې د ړندو پشان د فرعون تقلید کاوه، دوی به د ده تر شا تر آخري منزل (جهنّم) پورې وررسیږي، دا همغه کنده ده چې هلته به د یخو اوبو په ځای د پر سوځوونکی ایرې کوونکی اور وررسیږي.

وَأُتْبِعُوا۟ فِى هَٰذِهِۦ لَعْنَةً وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ بِئْسَ ٱلرِّفْدُ ٱلْمَرْفُودُ ﴿٩٩﴾

او ورپسې لګولی شوی دی په دغه دنیا کې لعنت او په ورځ د قیامت (هم)، بد انعام دی (هغه چې دوی ته) ورکړی شوی (دی).

تفسیر: یعني تر څو چې دنیوي خلق به پر فرعون او فرعونیانو لعنت لیږي؛ بیا په قیامت کې د ملائک الله او اهل الموقف له لوري به هم پر دوی لعنت وریږي، الغرض د لعنت سلسله به پر دوی پرله پسې جریان لري، او هیڅ به ترې نه بېلیږي، ګواکې استهزاء دغه یو انعام دی چې د هغه پر چارو ورته ورکړی شوی دی.

ذَٰلِكَ مِنْ أَنۢبَآءِ ٱلْقُرَىٰ نَقُصُّهُۥ عَلَيْكَ ۖ مِنْهَا قَآئِمٌ وَحَصِيدٌ ﴿١٠٠﴾

دا (تېرې شوې خبرې) له احوالو د قریو دي چې بیانوو مونږ هغه پر تا باندې، چې ځینې له هغو قریو ولاړې دي (کنډوالې د دوی او اهل یې هلاک دي) او ځینې یې رېبلی شوي دي (سره د اهل خپل لکه کښت «فصل» چې په لرونو سره رېبلی شوی وي).

تفسیر: یعنې د هغو قومونو قصې چې مونږ تاسې ته دراواورولې چې په څه شاني هغوی د انبیاوو علیهم السلام تکذیب او له هغو سره یې بې ادبي او سپین سترګي وکړه؟ او بیا څرنګه تباه شول؟ د هغوی ځینې کلي اوس هم ودان دي، لکه مصر چې د فرعون دار السلطنت وو، او ځینې وران شوي دي، مګر د هغوی څه کنډوالې لا پاتې دي، لکه د لوط علیه السلام د قوم کلی او د ځینو نښې هم د دنیا له مخې بیخي لرې او ورکې شوي دي.

وَمَا ظَلَمْنَٰهُمْ وَلَٰكِن ظَلَمُوٓا۟ أَنفُسَهُمْ ۖ فَمَآ أَغْنَتْ عَنْهُمْ ءَالِهَتُهُمُ ٱلَّتِى يَدْعُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ لَّمَّا جَآءَ أَمْرُ رَبِّكَ ۖ وَمَا زَادُوهُمْ غَيْرَ تَتْبِيبٍ ﴿١٠١﴾

او ظلم نه وو کړی مونږ پر دوی (په هلاکولو سره) ولیکن ظلم کړی وو هغوی پر ځانونو خپلو (په سبب د کفر او عناد) نو هیڅ دفع ونه کړه له دوی څخه هغو باطلو معبودانو د دوی هغه چې بلل به دوی غیر له الله (او د هغوی عبادت به یې کولو) هیڅ شی (د عذاب) کله چې راغی امر (حکم، عذاب) د رب ستا، او زیات نه کړ دغو معبودانو دوی ته (هیڅ شی) غیر له هلاکته.

تفسیر: یعنې پاک الله دوی بې قصوره ونه نیول چې د ظلم وهم پرې وشي، کله چې دوی د جرائمو په ارتکاب کې له حده تېر شول، او په دغه ډول یې خپل ځانونه علی رؤوس الأشهاد د سزا وړ او مستحق وګرځول، نو دلته پر دوی د پاک الله عذاب نازل شو، بیا وګورئ پر هغو باطلو معبودانو چې دوی ډېر ډاډه او مطمئن وو، او له هغو څخه یې لوی توقعات او امیدونه درلودل، هغوی هم داسې سختو مصیبتونو په وخت کې د دوی هیڅ پکار وره نغلل، باطل معبود یې څه پکار ورغی؟ بلکه د دوی د هلاک سبب وګرځېد.

وَكَذٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ ۚ إِنَّ أَخْذَهُۥٓ أَلِيمٌ شَدِيدٌ ﴿١٠٢﴾ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْآخِرَةِ ۚ ذٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ ﴿١٠٣﴾

او په شان د همدغو (نیولو) نیول د رب ستا دي کله چې ونیسي الله اهل د قریو حال دا چې دا (اهل د قریو کافر) ظالم وي، بېشکه نیول د الله ډېر دردناک سخت زورور دي، بېشکه په دې (مذکوره وو قصو) کې خامخا ډېر عبرت دی لپاره د هغه چا چې ویرېږي له عذابه د آخرت څخه، دغه ورځ د قیامت داسې یوه ورځ ده چې جمع به کړی شي په دې کې ټول خلق او دا ورځ ده چې حاضر به شي ورته ټول مخلوقات.

وَمَا نُؤَخِّرُهُۥٓ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ ﴿١٠٤﴾

او نه به وروستې کوو مونږ دا (ورځ) مګر لپاره د پوره کېدلو د نېټې معلومې (په نزد د الله).

تفسیر: یعنې د الله تعالی په علم کې کوم میعاد چې مقرر دی؛ هغه ضرور پوره کېدونکی دی، او بیا هغه لویه ورځ راتلونکې ده، له دغه تأخیر څخه داسې مه اټکل کوئ، چې دغه خبرې محض فرضي او وهمي خبرې دي (العیاذ بالله).

يَوْمَ يَأْتِ لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ إِلَّا بِإِذْنِهِۦ ۚ فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ﴿١٠٥﴾

په هغه وخت کې چې راشي قیامت، نه کوي خبرې هیڅ نفس مګر په اذن حکم د الله سره، نو ځینې له دغو خلقو به بدبخته او (ځینې به) نېکبخته وي.

تفسیر: یعنې هیڅوک به هغه خبره چې مقبوله او نافعه هم وي، بې د الله تعالی له اذنه او حکمه نشي ویلی، او د محشر په ځینو مواقفو کې خو مطلقاً یو حرف هم بې له اذنه او اجازې له خولې نشي ایستلی.

فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا۟ فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ ﴿١٠٦﴾ خٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴿١٠٧﴾ ۞ وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا۟ فَفِي الْجَنَّةِ خٰلِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَآءَ رَبُّكَ ۖ عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ﴿١٠٨﴾

نو هر څه هغه کسان چې بدبختان شوي دي؛ نو په اور کې به وي، وي به هغوی ته په هغه اور کې جګ (اوچت) سخت غږ (چې د حلقه وځي)، او ټیټ نرم غږ (چې د سینو وځي لکه د خرو). همېشه به وي دوی په دغه اور کې څو چې وي آسمانونه او ځمکه مګر چې اراده وفرمایي رب ستا، (چې بوځي له سعیره زمهریر ته)، بېشکه رب ستا کوونکی دی د هر هغه کار چې اراده وفرمایي. او هر چې هغه کسان دي چې نېک بختان شوي دي؛ نو په جنت کې به وي همېشه به

وي په همدغه جنت کې تر څو چې وي آسمانونه او ځمکه مګر چې اراده وفرمايي رب ستا (چې يې بوځي رضوان او لقاء الرحمن ته)، (دغه ورکړه) عطاء بخشش دی بې انتهاء (بلا انقطاع).

**تفسير:** د دغو آيتونو دوه معنی کېدی شي، يوه دا چې هومره مدت چې آسمان او ځمکه په دنيا کې پاتې وي، تر همغه مدت پورې اشقياء په دوزخ کې او سعداء په جنت کې اوسيږي، مګر هغه چې د زيادت اراده وکړي رب ستا او هغه هم ده ته معلوم دی، ځکه کله چې مونږ له طويلو څخه د طويلو زمانو تصور کوو، نو خپلو شاوخوا او ماحولونو په اعتبار اوږد مدت همدغه په خيال کې راځي، نو ځکه ﴿مَادَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ﴾ او نور الفاظ د عربو په محاوراتو کې د دوام د مفهوم د اداء کولو لپاره ويلی کيږي، باقي د دوام او ابديت اصلي مدلول چې ورته لا محدوده زمانه ښايي وويلی شي؛ نو هغه د پاک الله د هغه لا متناهي علم سره مختص دی، چې هغه يې په ﴿مَاشَآءَ رَبُّكَ﴾ سره اداء فرمايلې ده.

د آيت دويمه معنی دا کېدی شي چې د ﴿مَادَامَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ﴾ لفظ له دوامه کنايه واخيست شي.

يا له آسمانه او ځمکې څخه د آخرت آسمان او ځمکه مراد شي، لکه چې فرمايلې يې دي: ﴿يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ﴾ (۱۳ جزء د ابرهيم سورت ۴۸ آيت ۷ رکوع).

مطلب يې داسې شو چې اشقياء په دوزخ کې او سعداء په جنت کې تر هغه وخت پورې اوسيږي، چې د اخرت ځمکه او اسمان باقي وي، يعنې همېشه مګر که اراده يې وکړي رب ستا؛ نو موقوفوي يې، ليکن دا اراده يې نه کيږي، او محال وقوعي ده، ځکه چې د جنتيانو او د دوزخيانو خلود هم د پاک الله په مشيئت او اختيار کې دی، مګر خپله دغه اراده يې لا له پخوا څخه فرمايلې ده، چې د کفارو او مشرکينو عذاب او د اهل الجنت ثواب له سره موقوف کېدونکی نه دی، لکه چې فرمايلي يې دي: ﴿وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ﴾ (د البقرې سورت (۱۶۷) آيت (۲۰) رکوع) او ﴿يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنْهَا﴾ (د المائده سورت (۳۷) آيت (۲) رکوع) او ﴿لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُوْنَ﴾ (د البقره سورت (۱۶۲) آيت (۱۹) رکوع) او ﴿اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ (۵ جزء د النساء سورت (۱۱۶) آيت (۱۸) رکوع).

او پر همدغه د ګرد اهل الاسلام اجماع ده، څمونږ د زمانې ځينې تش په نامه مفسرين هغه څه چې د ده په خلاف يې ليکلي دي؛ هغه خو يا ضعيف او موضوع روايات دي، يا غريب او مؤول روايات دي، يا ځينې هغه آيتونه او احاديث دي چې د هغو پر مطلب د لنډ کتلو او خراب پوهېدلو لامله غلط پوهېدلی شوي دي، که الله تعالی توفيق راسره مل کړ، او د مستقل تفسير د ليکلو وار راغی؛ نو پر دې به مفصل کلام وکړو، د اختصار له سببه دلته د څه ليکلو موقع نشته، پاتې شوه د «عصاة الموحدين» مسئله يعنې هغه مسلمانان چې د خپلو ګناهونو لامله په دوزخ کې غورځولی کيږي (العياذ بالله)؛ نو د هغوی په متعلق صحيحو احاديثو مونږ د پاک الله پر مشيئت مطلع کړي يو، چې يوه ورځ هرومرو دې له دوزخ څخه ايستلی کيږي، او جنت ته رسول کيږي، ولې له جنته هيڅ يو جنتي د باندې نه ايستل کيږي، ښايي په همدې لحاظ د جنتيانو په ذکر کې ﴿عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوْذٍ﴾ او د اشقياوو په ذکر کې ﴿اِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ﴾ ارشاد فرمايلی وي، څو معلوم شي چې ځينې اشقياء به له دوزخه ايستل کيږي، مګر هيڅ يو سعيد به له جنته نه ايستل کيږي.

فَلَا تَكُ فِيْ مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هٰٓؤُلَآءِ ۭ مَا يَعْبُدُوْنَ اِلَّا كَمَا يَعْبُدُ اٰبَآؤُهُمْ مِّنْ قَبْلُ ۭ وَاِنَّا لَمُوَفُّوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوْصٍ ۝۱۰۹

پس مه کېږه ته په شک کې له هغو معبودانو چې عبادت يې کوي دغه کسان، نه کوي عبادت دوی مګر لکه چې عبادت به کاوه پلرونو د دوی پخوا (له دې نه)، او بېشکه چې مونږ پوره ورکوونکي يو دوی ته د برخې د دوی (له عذابه) بې له نقصانه.

تفسير: يعنې د دومره مخلوقاتو د شرک او بُت پرستى پر لاره لوېدل، او تر اوسه پورې د دوى په سزا نه رسېدل، داسې يو شى نه دى چې پرې انسان وغوليږي، او په شبهه کې ولوېږي، دغه خلق د خپلو پلرونو او نيکونو په بې اساسه تقليد کې مشغول او لګيا دي، هغه د دروغو معبودان د دوى په څه کار ورځي؟ يقينا دغو ټولو ته په آخرت کې پوره سزا وررسيږي، چې په کې هيڅ زيادت او نقصان به نه وي، ګواکې د ﴿غَيْرَ مَنْقُوصٍ﴾ لفظ د ﴿عَطَآءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ﴾ په مقابل کې ايښى شوى دى.

بعض مفسرين وايي چې په دنيا کې د رزق او نورو کومه برخه چې مقدره ده؛ هغه پوره ورسيږي، بيا د شرک پوره سزا هم مومي.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ ۗ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ ۗ وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ ﴿۱۱۰﴾

او خامخا په تحقيق ورکړى وو مونږ موسى ته کتاب (تورات)؛ نو اختلاف وکړ شو په دغه کې، او که نه وى هغه کلمه (حکم) چې وړومبى شوى وو له ربه ستا (د تأخير د جزا تر قيامته پورې) نو خامخا فيصله به شوې وه په منځ د دوى کې (په دنيا کې)، او بېشکه دوى خامخا په شک کې دي له دې (قرآنه) پراته دي په داسې شک کې چې غورځوونکى د زړونو دى په اضطراب کې.

تفسير: موسى عليه السلام ته يې کتاب ورکړ، او راويې لېږه، نو بني اسرائيلو پخپلو منځونو کې اختلاف سره وکړ، ځينو هغه ومانه او ځينو ترې سر وغړوه، لکه چې نن ورځ د لوى قرآن په نسبت همداسې اختلاف د انسانانو په منځ کې شته، بېشکه چې پاک الله د دې خبرې قدرت درلود، چې دغو اختلافاتو او تفريقونو ته موقع ورنه کړي، يا د هغه له پيدا کولو څخه وروسته د ګردو مکذبينو فوري استيصال او ټولې جګړې له يوې مخې لرې کړي، مګر د ده تکويني حکمت د دې خبرې اقتضاء ونه کړه.

يوه خبره د ده له حضوره لا له پخوا څخه مقرره او ټاکلې شوې ده، چې انسان ته يې تر يوه خاص حد پورې د کسب او اختيار آزادي او خپلواکي ورکړې ده، او د امتحان په ميدان کې يې خوشې کړى دى، او ورته ګوري چې دى په کومه لاره درومي؟ آيا د خالق او مخلوق حقوق په ښه ډول سره پېژني، او د پاک الله د رحمت او کرامت وړ او مستحق ګرځي؟ که کږه لاره غلطه چاره ځان ته غوره کوي، او د صحيح فطرت لارښوونې ته څه اهميت نه ورکوي، او خپل ځان د الله تعالى د غضب او سخط مظهر ګرځوي؟.

﴿لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا﴾ د همدغه مقصد په اقتضاء د انسان خلقت داسې ايښى شوى دى چې دى د نېکۍ او بدۍ په اختيارولو کې بالکل مجبور او مضطر نه وي، نو د دغه لازمي نتيجه دا ده چې په دنيا کې د خير او شر او د نېکيو او بديو مقابله يو له بل سره جاري او تل ارتباط ولري، چې وروسته د دوى له منځه مغضوب اومرحوم سره بېل کړل شي، څو د ﴿اِلَّا مَنْ رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ سره د ﴿لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ﴾ والا خبره هم پوره شي.

غالبا دا هغه لفظ دى که يې نه وى فرمايلې؛ نو د ګردو اختلافاتو خاتمه به بېخي يو ځلي سره کېده، عام خلق د دغو خبرو د حکمتونو په نه پوهېدلو لامله په شک کې لويدلي دي، چې وروسته له دې نه به هم د دغو اختلافاتو فيصله سره کيږي که نه؟.

وَاِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ اَعْمَالَهُمْ ۗ اِنَّهٗ بِمَا يَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۱۱﴾

او بېشکه هره فرقه (د مؤمنينو او د کافرينو) ځنې قسم دى چې خامخا پوره به ورکړي دوى ته رب ستا (جزاء) د عملونو د دوى، بېشکه چې الله پر هغو کارونو چې کوي (يې) دوى خبردار دى.

فَاسْتَقِمْ كَمَآ أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا إِنَّهُۥ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٢﴾

نو مستقيم او ثابت اوسه لکه چې حکم کړې شوی دی تاته او (هم مستقيم او ثابت دې اوسي) هغه څوک چې توبه يې ايستلې ده له تا سره، او مه تېرېږئ له حده، بېشکه چې الله پر هغو کاورنو چې کوئ يې تاسې ښه ليدونکی دی.

تفسير: يعني ته د دغو مشرکينو په جګړو او دعواوو او دنګلو کې خپل ځان مه غورځوه، ښايي چې تاسې او هغه مسلمانان چې له کفره او شرکه او نورو څخه يې توبه ايستلې ده، او ستاسې رفاقت او ملګرتوب يې غوره کړی دی، او د پاک الله په لوري يې په صدق سره رجوع کړې ده، د الله تعالی پر احکامو په نهايت مېړانې (بهادرۍ) او استقلال او استقامت سره تل ټينګ او کلک ولاړ اوسئ! په عقائدو، اخلاقو، عباداتو، معاملاتو، دعوت، تبليغ او نورو ګردو شيانو کې له افراطه او تفريطه بېل اوسئ! او د توسط او استقامت پر لاره سم رهي (روان) شئ! په هيڅ يوې معاملې کې د افراط او تفريط خوا مه نيسئ، او له شرعي حدودو د باندې مه وځئ! او يقين ولرئ! چې الله جل وعلا هره شېبه (لحظه) ستاسې اعمالو ته ګوري.

وَلَا تَرْكَنُوٓا إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴿١١٣﴾

او مه مائلېږئ تاسې (په دوستۍ سره) په طرف د هغو کسانو چې ظلم يې کړی دی؛ نو وبه رسيږي تاسې ته اور (د دوزخ) حال دا چې نه به وي تاسې ته پرته (علاوه) له الله هيڅ دوستان (چې ومو ساتي له عذابه) بيا به ونه کړی شي درسره مرسته.

تفسير: پخوا په ﴿وَلَا تَطْغَوْا﴾ کې يې له حده د باندې او بهر وتلو څخه منع کړې وه، اوس دا راښيي چې هغو ظالمانو خلقو ته نه ښايي چې ستاسې لږ ميلان رجحان دوی ته وي، د دوی له موالاتو، مصاحبتونو، تکريمو، مدحو، او ثناوو، ظاهري تشبهو، د عمل اشتراک او له هرې خبرې څخه حسب المقدور محترز او حتی الامکان مجتنب اوسئ!.

وَأَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ طَرَفَيِ ٱلنَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيْلِ إِنَّ ٱلْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ ٱلسَّيِّـَٔاتِ ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّٰكِرِينَ ﴿١١٤﴾

او قائم کړه لمونځ په دواړو طرفونو د ورځې او په ساعاتو له شپې (چې نژدې وي ورځې ته)، بېشکه چې نيکي (پنځه وخته لمونځ) لرې کوي بدي (کوچنې ګناهونه)، دغه (فرمان او وعده) پند دی لپاره د پند قبلوونکو.

تفسير: ظالمانو ته سر مه ټيټوئ! بلکه «وحده لا شريک له الله» ته خپل سرونه ټيټ کړئ! يعني صباح، ماښام، او د شپې په تياره کې په خشوع او خضوع سره لمونځونه ادا کوئ! چې همغه د پاک الله د مدد د حاصلولو ډېره لويه ذريعه ده.

تنبيه: د ورځې د دوه طرفونو يعني طلوع او غروب څخه پخوا، د فجر او عصر لمونځونه مراد دي، يا يو طرف فجر او بل طرف مغرب کېښود شي، چې هغه هم بالکل له غروب سره متصل وي، او د ځينو اسلافو په نزد په دغه کې فجر، ظهر، او عصر درېواړه لمونځونه داخل.

له ﴿وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيْلِ﴾ څخه فقط عشاء يا مغرب او عشاء دواړه مراد دي، ابن کثير «رحمه الله» دغه احتمال ليکلی دی، چې له ﴿طَرَفَيِ ٱلنَّهَارِ﴾ څخه فجر او عصر او ﴿وَزُلَفًا مِّنَ ٱلَّيْلِ﴾ څخه به تهجد مراد وي، ځکه د اسلام په ابتدا کې همدغه درې واړه لمونځونه فرض شوي وو، وروسته د تهجد فرضيت منسوخ شو، او د پاتې دوو سره د ددې نورو وقتونو تزييد وکړ شو، والله أعلم.

﴿إِنَّ الْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّـَٔاتِ﴾ يعنې د لمونځونو قائمول د الله تعالى يادونه ده، لكه چې په بل ځاى كې يې فرمايلي دي: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِذِكْرِيٓ﴾ يا دا مطلب چې د ﴿إِنَّ الْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّـَٔاتِ﴾ ضابطه د ياد كوونكو لپاره د يادونې خيز دى، چې ښايي له سره ونه هېراوه شي، ځكه له دې ځنې مؤمن ته د نېكيو په لوري خاص ترغيب كيږي.

وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۱۵﴾

او صبر وكړه (اى محمده په طاعت او مصيبت او له معصيت)، نو بېشكه چې الله نه ضايع كوي ثواب د نېكي كوونكو.

تفسير: په قرآنكريم كې له غور كولو څخه ظاهريږي چې د الله تعالى په امداد او اعانت حاصلولو كې دوو شيانو ته خاص دخل دى، «صلاة او صبر» ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَوٰةِ﴾ (د «البقرة» سورت (۱۵۳) آيت (۱۹) ركوع).

دلته يې هم وروسته له «صلاة» نه د صبر حكم فرمايلى دى، مطلب يې دا دى چې مؤمن دې د الله تعالى په عبادت او اطاعت كې مستقيم اوسي، او د هيڅ درد او رنځ پروا دې ونه كړي، نو هلته د الله تعالى مرسته او نصرت ورحاصليږي، د ده په لوى دربار كې د هيڅ يوې نېكۍ اجر نه ضايع كيږي، بلكه زيات له اندازې څخه هم وررسيږي.

فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ مِن قَبْلِكُمْ أُولُوا بَقِيَّةٍ يَنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّنْ أَنجَيْنَا مِنْهُمْ ۗ وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَآ أُتْرِفُوا فِيهِ وَكَانُوا مُجْرِمِينَ ﴿۱۱۶﴾

نو ولې نه وو (يعنې نه وو) له اهله د هغو زمانو چې وو پخوا له تاسې نه خاوندان د فكر او عقل چې منع كول يې (خلق) فساد نه په ځمكه كې (چې عذاب پرې نه وو راغلى)، مګر چې منع وكړه لږ له هغو خلقو نه چې خلاص كړل مونږ (دوى) له عذابه د هغو پخوانيو څخه (ځكه چې نهي عن المنكر به يې كول)، او متابعت وكړ هغو كسانو چې ظلم يې كړى وو (په فساد يا ترك د نهي سره) د هغې لارې چې آسوده كړى شوي وو دوى په هغې كې، او وو دوى ګنهګاران كافران.

تفسير: د پخوانيو امتونو حال يې راواوروه، او مونږ محمدي امت ته يې ترغيب او تشويق راكړ، چې په مونږ محمديانو كې «امر بالمعروف» او «نهي عن المنكر» كوونكي ښايي چې ډېر وي، پخواني اقوام ځكه تباه او فنا شول، چې په عمومي ډول سره خلق د عيش او عشرت په نشو كې مست او بې خبر شول، او د جرائمو په ارتكاب كې معتاد (روږدي) شول، او هغو لويو بااثرو سړيو چې په دوى كې لږ څه د خير اثر باقي وو، له دغو منكرانو له ممانعته ستركې پټې كړې، او هيڅ به يې ورته نه ويل، او په دې ډول له كفر او طغيانه او ظلمه او عصيانه د دنيا اخلاقي حالت داسې خراب شوى وو، چې د هغه اصلاح كوونكي هيڅوك نه وو، څو تنو شمېرليو شويو سړيو اګر كه د «أمر بالمعروف» لپاره خپل غږ پورته كړ، مګر په نغاره خانه كې څوك د طوطي غږ اوريدى شي، نتيجه يې داسې شوه؛ چې منع كوونكي له عذابه محفوظ پاتې شول، او نور ګرد قوم سره تباه او فنا شول.

وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ ﴿۱۱۷﴾

او له سره نه دى رب ستا (اراده كوونكى د دې) چې هلاك كړي (اهل د) قريو په ظلم او كفر سره حال دا چې وي اهل د دغو قريو (نېكان اصلاح راوستونكي) مصلحان.

تفسير: يعنې د هغو ښارونو او كليو خلق چې خپل حالت ښه كړي، او د اصلاح په لوري متوجه شي، او نېكۍ ته رواج وركړي، او د ظلمه او فساده ځانونه وژغوري (وساتي)، نو د قدوس الله شان دا نه دی چې خامخا دوی بالجبر ونيسي، او هلاك يې كړي، عذاب هلته نازلېږي چې خلق په كفر او عصيان يا ظلم او طغيان كې له حده تېر شي.

وَلَوْ شَآءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ﴿١١٨﴾ إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١١٩﴾

او كه اراده فرمايلي وی رب ستا نو هرومرو (خامخا) به يې ګرځولي وو دا خلق ټول سره امت يو (متفق په ايمان او طاعت) او همېشه به وي دوی اختلاف كوونكي (په دين كې). مګر هغه څوك چې رحم پرې وفرمايي رب ستا (او له اختلافه يې وساتي)، او لپاره د دې (اختلاف او رحمت) پيدا كړي دي الله دوی، او تمامه پوره شوه كلمه د رب ستا چې خامخا ډك به كړم هرومرو (خامخا) دوزخ له پېريانو او انسانانو سره ګډ.

تفسير: يعنې لكه چې څو ځلې ښخوا له دې نه ليكلي شوي دي، د الله تعالى تكويني حكمت د دې خبرې مقتضي نه دی؛ چې ګرده دنيا يو شانې پر يوې لارې برابره كړي، نو ځكه د حق په قبلولو او نه قبلولو كې همېشه اختلاف دی، او اختلاف به وي، مګر في الحقيقت اختلاف او افتراق غورځوونكي هغه كسان دي چې هغوی د صاف او صريح فطرت په خلاف حق ته د دروغو نسبت كوي، كه د فطرت سليمه سره ګرد سم تلل؛ نو هيڅ اختلاف به په منځ كې نه پيدا كېده، نو ځكه يې په ﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ سره تنبيه وفرمايله چې پر هغه كسانو چې الله تعالى د دوی د حق منلو په بركت رحم كړی دی، هغوی له اختلاف كوونكو څخه مستثنى دي.

﴿وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ﴾ الآيه ـ او لپاره د دې اختلاف او رحمت پيدا كړي دي الله دوی، يعنې د دنيا له پيدا كېدلو څخه همدغه غرض دی، چې د الله تعالى د هر قسم د «جلاليه وو» او «جماليه وو» صفاتو ظهور وشي، نو ځكه د مظاهرو اختلاف ضروري شو، څو يو جماعت خپل لوی څښتن (مالك) ته خپله وفاداري او اطاعت ورڅرګند كړي، او د ده د رحمت او كرم او رضوان او غُفران مظهر وګرځي، چې د ﴿إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ﴾ مصداق دی، او بل جماعت د خپل بغاوت او غداری په سبب د الله تعالى د عدل او انتقام د صفت مورد جوړ شي، او د حبس دوام سزا وګالي (برداشت كړي)، او پر هغو باندې د الله جل جلاله هغه خبره پوره شي چې ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ﴾ ده.

وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَآءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ وَجَآءَكَ فِي هَٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَذِكْرَىٰ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿١٢٠﴾

او دا ټول اخبار لولو مونږ پر تا (ای رسول الله) له احوالو د تېرو رسولانو هغه چې كلكوو قوي مطمئن كوو مونږ په هغو سره زړه ستا (په تزييد د يقين سره) او راغلي دي تاته په دغو اخبارونو كې حق (رښتيا) او موعظه (پند) او يادونه لپاره د مؤمنانو.

تفسير: مخكې د ډېرو انبياوو او رسولانو قصې مذكورې شوې، اوس د سورت په خاتمه كې د دغو قصو د ذكر په ځينو حكمتونو تنبيه فرمايي، يعنې د پخوانيو اقوامو او رسولانو د واقعاتو له اورېدلو څخه د رسول عليه السلام زړه لا زيات ساكن او مطمئن كيږي، او محمدي امت ته داسې تحقيقي خبرې معلومېږي، چې په كې د نصيحت او تذكير لوی وسائل شته.

انسان کله چې اوري چې زما نور نوعي ابناء په پخوانیو زمانو کې په دغه او هغه جرم سره هلاک شوي دي؛ نو د هغوی څخه د ځان ساتلو په فکر کې لویږي، او کله چې ګوري چې د هغې لارې له غوره کولو څخه هغو ړومبنیو اقوامو نجات موندلی دی؛ نو طبعا هم هغه لوري ته ځغلي.

﴿وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ۭ اِنَّا عٰمِلُوْنَ ۝ وَانْتَظِرُوْا ۚ اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ۝﴾

او ووایه (ای محمده !) هغو کسانو ته چې ایمان نه راوړي چې عمل وکړئ پر ځای خپل (په حال د شرک خپل)، بېشکه مونږ هم عمل کوونکي یو (په حال خپل چې اسلام دی). او انتظار کوئ (عاقبت د کار ته)، بېشکه مونږ هم انتظار کوونکي یو (عاقبت د کار ته).

﴿وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۭ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝﴾

او خاص الله لره دی (علم په) پټو د اسمانونو او (په پټو د) ځمکې، او خاص همده ته بېرته ګرځولی شي امر (کار د بندګانو) ټول، نو عبادت کوه د الله (چې مرجع د ټولو دی) او توکل وکړه پر الله، او نه دی رب ستا بې خبره د هغو کارونو څخه چې کوئ يې تاسې.

تفسیر: یعنې تاسې د دوی له کفر او شرارت څخه مه غمجن کېږئ ! او په خپل تبلیغ او دعوت کې لګیا اوسئ ! او د دوی فیصله هغه پاک الله ته ور وسپارئ ! چې ترې د ځمکې او اسمان هیڅ یوه پټه او ښکاره او وړوکې او لویه خبره نه ده پټه، او د ګردو معاملاتو بېرته ورتګ او رجوع همده ته کیږي، نو هلته به دوی ګرد سره وپوهیږي چې څرنګه په خبط او خطا کې لویدلي او سخت تېروتلي دي، تاسې خو د زړه له کومي په اخلاص او عقیدت سره د پاک الله په اطاعت او عبادت کې مشغول اوسئ ! او یواځې د همده په اعانت، اعتماد او توکل وکړئ !، ځکه چې الله جل جلاله ستا له دغو مخلصانه وو اعمالو څخه بې خبر نه دی، او سم له هغه سره به مناسبه معامله درسره کوي.

په حدیث کې راغلي دي چې لویو اصحابو رضوان الله تعالی علیهم أجمعین سوال وکړ: «یا رسول الله ! پر تاسې د زوړتوب آثار ډېر ژر راښکاره شول؟» نو رسول الله مبارک وفرمایل: «شیبتنی هود وأخواتها»، «د هود سورت او د ده نورو خویندو په زوړتوب کې اچولی یم».

هغه آیت چې څمونږ پاک رسول یې ډېر زهیر او سپینږیرتیا ته نژدې کړی دی؛ دا دی: ﴿فَاسْتَقِمْ كَمَآ اُمِرْتَ وَمَنْ تَابَ مَعَكَ وَلَا تَطْغَوْا ۭ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ﴾

رزقنا الله سبحانه وتعالی الاستقامة علی دینه وسنة نبیه صلی الله تعالی وسلم علیه وعلی آله الکرام وأصحابه العظام.

تمت سورة (هود).



# سُورَةُ يُوسُفَ

«د (یوسف) سورت مکي دی، پرته له (۱، ۲، ۳، ۷) آیتونو چې مدني دي، (۱۱۱) آیتونه او (۱۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۱۲) او په نزول کې (۵۳) سورت دی، وروسته د هود له سورت څخه نازل شوی دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝ اِنَّآ اَنْزَلْنٰهُ قُرْءٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝٢

دا (مخکیني آیتونه چې لوستی کېږي) آیتونه دي د کتاب واضح (چې د هغه من عند الله توب بالکل واضح دی، او پر هغو احکامو او شرائعو یا مواعظو چې هغه مشتمل دی؛ نهایت روښان او صاف دی). بېشکه چې مونږ نازل کړی دی دا کتاب په دې حال کې چې قرآن عربي دی، لپاره د دې چې تاسې پوهه شئ (پرې).

تفسیر: یعني عربي ژبه له ګردو ژبو څخه زیاته فصیحه او وسیعه منضبطه او د شوکته ډکه او باشانه ژبه ده، د قرآن د نزول لپاره منتخبه شوې ده، کله چې رسول الله مبارک ذاتاً عرب دی؛ نو ښکاره ده چې په دنیا کې به ړومبی مخاطب عرب وي، بیا د عربو په ذریعه د دنیا په څلورو خواوو کې دغه رڼا خپره (خوره) شوه، د همدې په لوري په ﴿لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ﴾ کې یې اشاره فرمایلې ده، چې ستاسې په ژبه د قرآن د نزول یوه وجه دا ده، تاسې چې د رسول الله مبارک قوم یئ، اول د ده د علومو او معارفو خوند وڅکئ! او بیا یې نورو ته وروڅکوئ! لکه چې همداسې هم وشو.

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ اَحْسَنَ الْقَصَصِ بِمَآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ هٰذَا الْقُرْاٰنَ ۖ وَاِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الْغٰفِلِيْنَ ۝٣

مونږ بیانوو (لولوو) پر تا باندې ډېره ښه قصه له ټولو قصو (څکه چې خاوند یې ښه دی) په سبب د وحي څمونږ تاته دغه قرآن، او بېشکه شان دا دی چې وې ته پخوا (له نزوله) د دې قرآن خامخا له ناخبرانو (په دې قصې).

تفسیر: یعني د همغې وحي په ذریعه چې د قرآنکریم په صورت پر تا نازلیږي؛ مونږ یو نهایت ښه بیان پر حسین طرز سره تاته اوروو، چې له هغه څنې تر اوسه پورې ته هم لکه د خپل قوم بې خبره وې.

مفسرینو د دې سورت په شان نزول کې څو روایتونه نقل کړي دي، چې د ګردو له یو ځای کولو څخه دا معلومیږي، چې یهودانو د مکې معظمې د مشرکانو په ذریعه څمونږ له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه امتحاناً داسې پوښتنه وکړه، چې ابراهیم علیه السلام او د ده ځامن خو په شام کې اوسېدل، نو بیا بني اسرائیل مصر ته څرنګه ورسېدل؟ چې په هغه کې د موسی علیه السلام او د فرعون مقابلې ته وار ورسېد، امکان لري چې مسلمانان هم د داسې یوې ښې مفصلې تاریخي واقعي اورېدلو ته مشتاق وي، چې له بصائرو او عبرتونو څنې ډکه وي.

له بل لوري د دې قصې په ضمن کې د هغو احوالو او حوادثو چې تذکره کېدونکې وه؛ هغه له څو جهاتو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د ده د قوم له حالاتو سره مشابهت درلود، چې د هغه ذکر د رسول الله مبارک په حق کې

د تسکين او اطمينان موجب او د دوی د قوم په حق کې د پند او عبرت سبب وو، د دغو وجوهو لامله دغه پوره واقعه په بسط او تفصيل سره قرآنکريم بيان وفرمايله، څو سائلينو ته معلوم شي، چې اسرائيل يعني يعقوب عليه السلام او د ده د اولادې د راتګک سبب له شامه مصر ته د يوسف عليه السلام واقعه ده، چې بيا هملته يې نسل منتشر او خور شو، تر هغه چې موسی عليه السلام راغی، او دوی ته يې د فرعون او قبطيانو له غلامی څخه نجات ورکړ.

إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ إِنِّي رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سَاجِدِينَ ﴿٤﴾

(ياد کړه) هغه وخت چې وويل يوسف پلار خپل (يعقوب) ته: ای پلاره ځما ! بېشکه چې ما وليدل (په خوب کې) يوولس ستوري او لمر او سپوږمی، وليدل ما دوی چې ماته سجده کوونکي وو.

قَالَ يَا بُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُؤْيَاكَ عَلَىٰ إِخْوَتِكَ فَيَكِيدُوا لَكَ كَيْدًا ۖ إِنَّ الشَّيْطَانَ لِلْإِنسَانِ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿٥﴾

وويل (يعقوب): ای بچوړيه ځما ! مه بيانوه خوب خپل ورونو خپلو ته؛ نو حيله به وکړي دوی (هلاک ستا) ته په حيله کولو سره، بېشکه چې شيطان انسان ته دښمن دی ښکاره (نه چې د دوی په زړونو کې کينه واچوي تاته).

تفسير: يعني شيطان هر وخت انسان ته په پټونې کې ناست دی، او په زړونو کې وسوسې ورآچوي، ورونه به ستا په خلاف درته پورته کوي، ځکه چې د ده د خوب تعبير ډېر ظاهر وو، او د يوسف عليه السلام ورونو ته چې په هر حال د نبوّت له کورنی څخه وو؛ د داسې يوه واضح خوب په تعبير پوهېدل دومره مشکل نه وو، چې يوولس ستوري يې يوولس ورونه دي، او سپوږمی او لمر مور او پلار يې دي، ګواکې دوی ګرد به په کوم وخت کې د يوسف عليه السلام د شان د عظمت په مقابل کې سرونه ښکته کوي، لکه چې د دې سورت په آخر کې ﴿وَقَالَ يَا أَبَتِ هَٰذَا تَأْوِيلُ رُؤْيَايَ مِن قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا﴾ په ويلو سره يې دغه لوري ته اشاره وکړه.

معلوميږي چې يعقوب عليه السلام له دې خوبه پخوا همدغه خبره محسوسه کړې وه، چې له يوسف عليه السلام سره يې خصوصي محبت کاوه، چې د هغه له ليدلو څخه د ده علاتي ورونه پټ په زړونو کې سره سوځېدل، او له ده سره به يې رخې (کينې) کولې، نو ځکه يعقوب عليه السلام ته داسې يو خيال پيدا شو، که هغوی دغه خوب واوري؛ نو لا د حسد او رخې اور کې به د دوی زړونه وسوځي، او شيطان به د دوی په زړونو کې لا د حسد او رخې لمبې بلې او اوچتې کړي، امکان لري چې دوی داسې حرکت وکړي؛ چې په هغه کې د يوسف عليه السلام اذيت او پخپله د دوی د رسوايی او بدانجامی موجب وي، نو ځکه يعقوب عليه السلام يوسف عليه السلام منع کړ، چې خپل خوب دې نورو ورونو ته مه ښکاره کوه، تر دې چې يوسف عليه السلام ته يې اجازه ور نه کړه چې خپل سکه ورور «بنيامين» ته هم د هغه خوب ذکر وکړي، اګر که له هغه څخه د کومې خرابی اندېښنه نه وه، ليکن ممکن وو، چې هغه يې په بې احتياطی سره نورو ته ووايي، او په دې ډول دغه خبره په خلقو کې خوره او شائع شي.

وَكَذَٰلِكَ يَجْتَبِيكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكَ وَعَلَىٰ آلِ يَعْقُوبَ كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ ۚ إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٦﴾

او همدارنګه (چې ته په دغه خوب سره غوره شوی يې) غوره به کړي تا رب ستا، او وبه ښيي تاته له ګرځولو دخبرو (خپلو ځايونو ته لکه تعبير د خوبونو، بيان د کتابونو يا حقيقت دخبرو)، او

پوره به کړي نعمت خپل پر تا او پر (نورې) کورنۍ د یعقوب (په نبوّت) لکه چې پوره کړی یې دی دا نعمت پر دووو پلرونو ستا پخوا له تانه چې ابراهیم دی او اسحاق دی، بېشکه چې رب ستا ښه عالم دی (پر ټولو احوالو)، ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: یعنې همداسې چې دغه خوب یې دروښود؛ همغسې محض د خپل رحمت په جاذبه سره د خپل قرب په دربار کې تاته خصوصاً مقام عطا فرمايي، لکه چې نبوت یې درعطا کړ، او په راز راز ظاهري او باطني مهربانيو سره یې وپاللې.

﴿وَيُعَلِّمُكَ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ﴾ مثلا د رؤیاوو تعبیر یعنې چې د خوب پېښه واورې، او د هغه اجزاء پخپل ذهانت او فراست پخپل ځای کې ولګوې، یا د هرې خبرې په محل او موقع پوهېدل، او د معاملاتو پر عواقبو او نتائجو پوهېدل، سم له لاسه یې سنجول (حل کول)، یا د پاك الله او انبیاء الله ارشادات او د اقوامو او د اممو د قصو او د منزله وو کتابونو د مضامینو تر ژورو معانیو پورې رسېدل؛ دغه ګرد شیان د ﴿تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ﴾ لاندې مندرج کېدی شي.

﴿كَمَا أَتَمَّهَا عَلَىٰ أَبَوَيْكَ﴾ یعقوب علیه السلام تواضعاً خپل نوم وانه خیست، او د خپل پلار اسحاق او د هغه د پلار ابراهیم علیهما السلام ذکر یې وفرمایه، الله تعالی ابراهیم علیه السلام خپل نبي ګرځولی وو، او د ده دښمن نمرود یې هلاك کړ، او د اور شعلې یې پرې ګلزارې کړې، اسحاق علیه السلام ته یې نبوّت ورعطا کړ، بیا د ده له صلبه یې د یعقوب علیه السلام په شان یو نبي پیدا کړ، چې له هغه څخه د بني اسرائیلو د ګردو انبیاوو سلسله پیدا شوې ده، په صحیح حدیث کې راغلي دي: «الکریم ابن الکریم ابن الکریم یوسف بن یعقوب بن إسحاق بن إبراهیم».

لَّقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِّلسَّائِلِينَ ﴿٧﴾

خامخا په تحقیق چې وو په (قصې د) یوسف او ورونو د ده کې دلائل (د قدرت د الله او نبوت ستا) لپاره د پوښتنو کوونکو.

تفسیر: یعنې هغه خلق چې د داسې واقعاتو پوهېدلو پسې ګرځي، او کومې نتیجې پورې رسېدل غواړي؛ هغوی ته د یوسف علیه السلام او د یوسف علیه السلام د ورونو په قصه کې د هدایت او عبرت لوی دلائل شته، د دې قصې له اورېدلو څخه په زړونو کې د الله تعالی د عظیم قدرت او حکمت نقش کلك ټینګیږي، او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صداقت ښکاره ثبوت په لاس راځي، چې دوی سره له امیتوبه، او بې له کومه معلمه یا کتابه یا نورو څخه د استفاده کولو داسې منقح او منضبطه تاریخي حقائق انکشاف فرمايي، چې د هغو د بیان توجیه غیر له رباني اعلامو په بل شي نشي کېدی، خصوصاً د مکې قریشو ته چې د یهودانو په لمسون د دغې قصې په متعلق له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې پوښتنې کولې، په دغې واقعې کې ډېر لوی عبرت ښوونکی درس دی.

إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٨﴾ اقْتُلُوا
يُوسُفَ أَوِ اطْرَحُوهُ أَرْضًا يَخْلُ لَكُمْ وَجْهُ أَبِيكُمْ وَتَكُونُوا مِن بَعْدِهِ قَوْمًا صَالِحِينَ ﴿٩﴾

(یاد کړه) هغه وخت چې وویل ورونو د یوسف یو بل ته: خامخا یوسف او ورور یې (بنیامین) ډېر ګران دي پلار څمونږ ته له مونږ څني، حال دا چې مونږ ډله یو قوتناکه، بېشکه پلار څمونږ خامخا په خطا ښکاره کې دی. (نو پر دغه خبره یې سره تړون وکړ): ووژنئ یوسف یا یې وغورځوئ تاسې هغه په کومې ځمکې (لرې) کې، چې وزګار (او خالص) شي تاسې ته مخ د پلار ستاسې، او شئ به تاسې وروسته له دې (کار) یو قوم صالحان.

تفسير: يعقوب عليه السلام له يوسف عليه السلام او د ده د عيني ورور «بنيامين» سره زيات محبت کولو، ځکه چې دوی دواړه له خپلو علاتي ورونو ځنې وړوکي وو، او د دوی مور هم وفات شوې وه، او خاص د يوسف عليه السلام په نسبت د فراست له نوره، يا له رباني الهامه پوهېدلی وو، چې د ده مستقبل ډېر روڼ او ځلېدونکی دی، او د نبوّت د کورنۍ سلسله د ده له ذاته سره تړلې ده.

او پخپله د يوسف عليه السلام ښايسته صورت او سيرت، ظاهري او باطني کمالاتو د ده د لوی پلار خصوصي محبت خپل لوري ته ورجذباوه، حال دا چې هغه وضعيت پر نورو ورونو ډېر سخت تېرېده، دوی به سره ويل چې: د ضرورت په وخت کې د کار سړي خو مونږ يو، او ځمونږ ډله د قوت او قدرت خاونده چې د پلار د ضعيفی په وخت کې هم په کار ورتلی شو، له دغو وړوکو هلکانو څخه هيڅ هيله او اميد نشي کېدی، نو د همدغو خيالاتو په اثر د خپل لوی پلار په نسبت به يې ويل چې: دی په دغه معامله کې په سخته غلطی او صريحه خطا کې دی، او د خپلې نفعې او نقصان صحيحه موازنه نه کوي.

﴿اقْتُلُوا يُوسُفَ﴾ الآيه ـ يعنې د حسد او رخې (کينې) اورونه د دوی په زړونو کې دننه لګېدل، بالآخر دوی پخپلو منځونو کې سره مشورې وکړې، چې د يوسف عليه السلام په موجوديت کې امکان نه لري؛ چې د خپل لوی پلار خصوصي محبت او توجّه مونږ خپل لوري ته کش کړی شو، نو ځکه ښايي چې د يوسف عليه السلام خبره همدلته پای ته ورسوو، يا خو دې ووژلی شي، يا دې په کوم لري ملک کې وغورځاوه شي، چې له هغه ځايه بېرته رانشي، کله چې دی نه وي؛ نو د پلار ګرده توجه به ځمونږ په لوري متوجه کيږي، او د ده د ګردو مهربانيو يواځې مونږ حقداران پاتې کيږو، د «بنيامين» معاملې ته دوی غالباً څه اهميت نه ورکولو، لکه چې د هغه محبت يې د يوسف عليه السلام د محبت ضميمه ګاڼه.

﴿وَتَكُونُوا مِن بَعْدِهِ قَوْمًا صَالِحِينَ﴾ يعنې يو ځلې د قتل او نورو ګناهونو ارتکاب واقع کيږي، او وروسته د هغه له فراغته بيا به توبه کوو، او ښه نېک سړي به کيږو، يعنې هم په رندانو کې رند حسابيږو، او هم جنت به له لاسه نه ورکوو، ځينو مفسرينو د ﴿وَتَكُونُوا مِن بَعْدِهِ قَوْمًا صَالِحِينَ﴾ معنی داسې اخيستې ده: چې وروسته له يوسف عليه السلام ځمونږ ګرد کارونه پخپله ښه کيږي، ځکه چې د لوی پلار د شفقت لاس له يوسف عليه السلام څخه لنډ او مايوس کيږي، او يواځې ځمونږ پر سرونو به راکش کيږي.

قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ لَا تَقْتُلُوا يُوسُفَ وَأَلْقُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ إِن كُنتُمْ فَاعِلِينَ ۝١٠

وويل يوه ويونکي له دوی څخه چې: مه وژنئ يوسف (چې لويه ګناه ده) او (بلکه) وغورځوئ تاسې هغه په تياره ښخ د ګمنامي کوهي کې چې واخلي ځينې تېريدونکي (د لارې چې کوم لرې ملك ته يې يوسي) که يئ تاسې کوونکي (د دې بېلتون).

تفسير: داسې ويونکی «يهودا» وو، يعنې وژل يې لويه ګناه او غټه خبره ده، او ځمونږ مقصد بې له قتله هم حاصلېدی شي، که تاسې د يوسف عليه السلام بېلتون له دې ځايه غواړئ؛ نو آسان صورت يې دغه دی، چې له کلي څخه يې لرې په کوم تياره ګمنامه کوهي کې وغورځوئ، پس دوی ټول سره په دې متفق شول، او پلار ته راغلل.

قَالُوا يَا أَبَانَا مَا لَكَ لَا تَأْمَنَّا عَلَىٰ يُوسُفَ وَإِنَّا لَهُ لَنَاصِحُونَ ۝١١

نو وويل دوی: ای پلاره ځمونږ ! څه باعث دی تا لره چې امين نه ګرځوې ته مونږ پر يوسف باندې حال دا چې بېشکه مونږ ده ته خامخا نصيحت ګران (خير غوښتونکي) يو.

تفسير: له دې نه معلومېږي چې پخوا له دې نه هم دوی داسې غوښتنه له خپله پلاره کړې وه، مګر د دوی زړه مطمئن نه وو، چې يوسف عليه السلام له هغوی سره پر پرېږدي.

أَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ﴿۱۲﴾

ولېږه دی له مونږ سره صباح (ورځ صحرا ته) چې وخوري ډېرې مېوې او لوبې وکړي، او بېشکه مونږ ده لره خامخا ساتونکي يو (له هر تکليفه).

تفسير: يعني د داسې پيمخي، ښايسته او قوي هلک ګردې قواوې له کوره کښېناستو څخه له کاره وځي، مناسب دي چې له مونږ سره د پسو د څر لپاره صحرا ته لاړ شي، او هلته د صحرايي ګلانو ښه سيلونه وکړي، او مېوې يې وخوري، او ښې لوبې وکړي، او ټوپونه او منډې ووهي، او وځغلي، او نور ښه جسماني ورزشونه وکړي.

وايي چې د هغوی لوبې منډې وهل او غشي ويشتل وو، او برسېره پر هغو د ووړکيو لپاره تر مناسبې اندازې پورې لکه چې ابو حيان «رحمه الله» ليکي: «لوبې او مستي کول د نشاط او خوښۍ او خوشالۍ سبب دی».

قَالَ إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَنْ تَذْهَبُوا بِهِ وَأَخَافُ أَنْ يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ وَأَنْتُمْ عَنْهُ غَافِلُونَ ﴿۱۳﴾

وويل (يعقوب): بېشکه زه چې يم خامخا غمجنوي مې بيول ستاسې دي يوسف لره، او وېرېږم له دې نه چې وبه خوري يوسف لره لېوه حال دا چې تاسې به له ده نه غافلان يئ.

تفسير: يعني د يوسف عليه السلام بېلتون او له تاسو سره د هغه د تللو تصور ما له حده زيات غمجن کوي، او پر هغه برسېره له دې نه هم وېرېږم چې دی هلک دی، نه چې ستاسې له بې خبرۍ او غفلت څخه کوم لېوه يا بل کوم داړونکی يې در څخه ونه داړي، او ويې نه خوري، ليکي چې په هغې صحرا (بيديا) کې لېوان ډېر زيات وو.

شاه صاحب ليکي: «څرنګه چې دوی وروسته له دې نه د لېوه بهانه جوړوونکي وو؛ نو د همدې لامله د يعقوب عليه السلام په زړه کې هم د لېوه وېره ولوېده».

قَالُوا لَئِنْ أَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّا إِذًا لَخَاسِرُونَ ﴿۱۴﴾

(نو بيا وروڼو د يوسف) وويل: قسم دی که وخوري يوسف لره لېوه حال دا چې مونږ ډله قوتناکه يو؛ نو بېشکه مونږ به په دغه وخت کې خامخا له زيانکارانو څخه يو.

تفسير: يعني که څمونږ په شان د يوې قوتناکې ډلې په موجوديت کې څمونږ وړوکی ورور لېوه وخوري؛ نو وپوهېږئ چې مونږ له کاره وتلي او بېکاره ځلميان يو، او له دغې خبرې څنې بله کومه خرابه او نقصانمنه خبره به وي چې د لسو قوتناکو وروڼو په منځ کې يو وړوکی هلک د لېوه خولې ته ورسيږي، او که داسې کومه پېښه واقع شي؛ نو البته چې مونږ خپل ګرد شيان له لاسه ورکړي دي.

فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا أَنْ يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ وَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿۱۵﴾

نو کله چې بوتلو دوی يوسف لره او اتفاق يې سره وکړ په دې چې وغورځوي دی په تياره بېخ د کوهي کې (نو ويې غورځاوه) او وحيې وکړه مونږ يوسف ته چې ته به خامخا خبر ورکړې دوی ته په کار د دوی چې دغه دی، حال دا چې دوی به نه پوهېږي (چې ته يوسف يې).

تفسير: مفسرينو ډېرې داسې ضمني قصې په داسې درد زياتوونکي او رقت غورځوونکي ډول سره نقل کړې دي، چې د هغو له اورېدلو څخه د تيږي (ګټې) زړه هم خوږېږي، او د هغو لوستل سړى ډېر ژړوي، الله خبر چې هغه به تر کومه حده صحيح وي، لوى قرآن د خپل خاص نصب العين په اعتبار دا قسم تفصيلاتو ته زياته اعتناء نه ده کړې، او نه يې د يادولو وړ (لايق) ګڼلي دي، نو دلته هم هغه ټولې ضمني خبرې يې حذف کړې، اخري خبره يې دا راوښوده چې د يوسف عليه السلام ورونه په لطائف الحيل سره له پلاره ځنې يوسف عليه السلام يووړ، او سم له تړلي شوي قرارداده د هغه کوهي په منځ کې دغورځولو ترتيبات يې نيول، په دغه وخت کې مونږ يوسف عليه السلام ته داسې اشاره وکړه، چې پر هغه باندې له سره نور خلق ونه پوهېدل، چې بيخي مه ويرېږه، ځکه چې داسې يو وخت هم راتلونکى دى، چې دغه ګردې چارې به دوى ته ورپه يادوې، او په هغه وخت کې به ته په داسې يو لوړ (اوچت) مقام او لويه مرتبه کې يې چې دوى به دې له سره نشي پېژندلى، يا د عهد د طوالت لامله به دې نشي پېژندلى.

دغه غيبي اشاره په خوب کې شوې يا په ويښه کې؟ د الهام په ذريعه شوې که د پرښتې په وسيله؟ د دغه تفصيل په لوى قرآن کې نشته، البته د ظاهرو الفاظو له ليدلو څخه دا ويلى شو، چې د وحيې راتلل په څلوېښت کلنى پورې نه ده موقوفه، ځکه چې د يوسف عليه السلام عمر په دغه وخت کې ډېر لږ وو، والله أعلم.

وَجَآءُوٓ أَبَاهُمۡ عِشَآءٗ يَبۡكُونَ ﴿١٦﴾

او راغلل دوى پلار خپل ته بېګا (په تياره کې) چې ژړل يې (په دروغو سره).

تفسير: ځو چې دوى خپلو کورونو ته بېرته راغلل تياره شوه، يا قصداً په تياره کې راغلل، چې د ورځې په رڼا کې د پلار مخ ته کتل دوى ته ډېر مشکل ښکارېده، او د شپې تور ټکرى (څادر) تر يوې اندازې پورې د بې حيايى، بې رحمى او د دروغو ژړا او انګولا څه پرده داري کولى شي.

قَالُواْ يَٰٓأَبَانَآ إِنَّا ذَهَبۡنَا نَسۡتَبِقُ وَتَرَكۡنَا يُوسُفَ عِندَ مَتَٰعِنَا فَأَكَلَهُ ٱلذِّئۡبُۖ وَمَآ أَنتَ بِمُؤۡمِنٖ لَّنَا وَلَوۡ كُنَّا صَٰدِقِينَ ﴿١٧﴾

وويل دوى چې: اى پلاره ځمونږ! بېشکه چې مونږ لاړو مسابقه مو سره کوله (په غشو ويشتلو او ځغښتلو) کې، او پرېښود مونږ يوسف (يواځې) په نزد د اسباب خپل؛ نو وخوړ ده لره لېوه، او نه يې ته باور کوونکى مونږ لره (په دې خبرې) او اګر که يو مونږ رښتيني.

تفسير: يعني مونږ په حفاظت کې هيڅ قصور نه دى کړى، چېرې چې ځمونږ کالي (جامې) او اسباب او نور د کار او د ساتنې وړ شيان ايښي شوي وو، مونږ همغلته يوسف عليه السلام يواځې کېناوه، او مونږ صحرا ته لاړو، چې يو تر بله وړاندې شو، په منډو منډو او غشو ويشتلو کې؛ نو چې لږه شيبه ځمونږ ستر ګې ترې واوښتې، لېوه راغى او يوسف يې له مونږ ځنې وتښتاوه، حال دا چې په داسې يوه لږه موقع له سره د داسې احتمال امکان نه وو، چې سم له لاسه لېوه ور ورسيږي، او على الفور يوسف عليه السلام ښکار کړي.

﴿وَمَآ أَنتَ بِمُؤۡمِنٖ لَّنَا وَلَوۡ كُنَّا صَٰدِقِينَ﴾ يعني د يوسف په معامله کې لا له ابتداء څخه تاسې پر مونږ بدګمانه يئ، که مونږ تاسې ته بيخي صحيح او رښتيا خبره هم وکړو؛ خو بيا هم تاسې په دغه مخصوصه معامله کې ځمونږ پر خبرو باور په هيڅ شان کوونکي نه يئ.

وَجَآءُوْ عَلٰى قَمِيْصِهٖ بِدَمٍ كَذِبٍ ۭ قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوْنَ ﴿١٨﴾

او راوړه دوی د پاسه په کمیس د یوسف باندې وینه د دروغو، نو وویل (یعقوب خپلو ځامنو ته چې دا ټول دروغ دي): بلکه ښایسته کړي دي تاسې ته نفسونو ستاسې یو (لوی بد) کار، نو کار ځما صبر جمیل دی (چې په کې هیڅ شکایت ونه کړم خلقو ته)، او الله څخه مدد غوښتلی شي په (تحمل د) هغې (خبرې) کې چې تاسې یې بیانوئ (له هلاکه د یوسف).

تفسیر: یو وځګوړی (چېلی) یا هوسی یا بل حیوان یې ذبح کړ، او د یوسف یو کمیس یې د هغه په وینو سره ولاړه، او هغه یې پلار ته راوړ، او په دغه دروغو وینو سره یې کوښښ کاوه چې د پلار یقین پر خپله دغه خبره راولي چې دغه دی لیوه، یوسف علیه السلام یې داړلی او خوړلی چې کمیس یې په وینو سره لړلی دی.

په رښتیا سره چې «دروغجن د یاد خاوند نه وي» کمیس یې خو په وینو ولاړه، مګر دومره یې خیال ونه کړ، چې هغه کمیس به یې په بې ترتیبۍ سره هم څیرلی او شلولی وی، او بیا یې سره له دغو ویناوو خپل پلار ته وړاندې کړی وی.

نو یعقوب علیه السلام په صاف ډول سره وفرمایل چې: دغه ګردې ستاسې حیلې او پلمې (تدبیرونه) او له خپله ځانه جوړې کړې خبرې دي، په هر حال زه جمیل صبر ځان ته اختیاروم، چې په هغه کې نه د بل چا په مخ کې به شکوه او شکایت وکړم، او نه له تاسې څخه د انتقام په کوښښ کې یم، یواځې د خپل پاک الله له درباره غواړم چې په دغه صبر کې ځما مدد وفرمایي، او په خپل غیبي اعانت سره د هغې خبرې حقیقت چې تاسې یې ظاهروئ په داسې شان راښکاره کړي چې په سلامتۍ سره بیا یوسف علیه السلام سره وګورم.

وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ فَاَرْسَلُوْا وَارِدَهُمْ فَاَدْلٰى دَلْوَهٗ ۭ قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ ۭ وَاَسَرُّوْهُ بِضَاعَةً ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾

او راغله قافله (له مدین چې مصر ته تله) نو ولېږه دوی اوبه راوړونکی خپل، نو (ځوړنده) خوشې یې کړه بوکه خپله (په کوهي کې نو ونښت یوسف په دغې بوکې پورې، کله چې ویې لیده)؛ نو ویې ویل: ای خوشالیه ځما ! چې دا یو هلک دی ډېر ښایسته، او پټ کړ دوی هغه د تجارت د مال په توګه، او الله ښه عالم دی په هغو کارونو چې کول (ورونړو د یوسف له بې رحمۍ).

تفسیر: وایي چې تر درې ورځو پورې یوسف علیه السلام په هغه کوهي کې د پاک الله په قدرت خوښ او محفوظ ده‌ره وو، د ده د یوه ورور (یهودا) په زړه کې دغه خبره ولوېده، چې هره ورځ ورته په همغه کوهي کې ډوډۍ ورسوي، او برسېره په هغه نورو ورونړو یې هم خبر اخیست، چې هلته مړ نشي، او د کوم بل ملک مسافر یې ترې وباسي، او له ځان سره یې بوځي، او ځمونږ له منځه دغه اغزی ورک شي، رښتیا ده چې «دغلیمانو (دښمنانو) په سترګو اغزی ښکاري ګل».

بالآخر له مدین څخه یوه قافله د مصر په لوري تله، کله چې د دغه کوهي له خوا تېرېده، او د هغوی نظر پر هغه کوهي ولوېد؛ نو یو سړی یې د اوبو اخیستلو لپاره ورولېږه، ده چې خپله بوکه وغورځوله؛ نو یوسف علیه السلام چې وړوکی هلک وو، ژر په هغې بوکې کې کښېناست او پړی یې په خپل لاس ټینګ ونیو، او له کوهي څخه ووت، کله چې د بوکې کشوونکي سترګې پرې ولګېدې؛ نو د یوسف علیه السلام د حسن او جمال له لیدلو ځنې

له حده تېر خوشاله شو، او ناڅاپه يې له خولې څخه دغه غږ پورته شو چې عجيبه هلك دى، او په ډېر ښه قيمت پلورل (خرڅول) كېږي.

﴿وَأَسَرُّوهُ بِضَاعَةً﴾ يعنې بوكه كشوونكي د دغې خبرې له خپلو نورو ملګرو څخه پټولو په فكر كې وو، چې كه نور پرې خبر شول؛ نو ګرد (ټول) به راسره شريكيږي.

﴿وَشَرَوْهُ بِثَمَنٍ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُودَةٍ وَكَانُوا فِيهِ مِنَ الزَّاهِدِينَ ﴿٢٠﴾﴾

او وپلوره (خرڅ كړ) دوى هغه (ورور خپل) په پيسو ناكارو سره چې يو څو روپۍ وې شمېرلې شوې (لږې)، او وو دوى په حق د يوسف كې له بې رغبتانو.

تفسير: يعنې د يوسف عليه السلام وروڼه خبر شول، چې قافلې يوسف عليه السلام له كوهي څخه وويست، او له ځان سره يې بوته، نو ژر ورپسې ورغلل، او دا يې ورښكاره كړه چې دغه ځمونږ مريي دى، چې په تېښته سره راغلى دى، څرنګه چې د ده عادت دى چې تل تښتي؛ نو ځكه مونږ نه غواړو چې وروسته له دې نه يې وساتو، كه يې پېرئ (اخلئ) نو پېرودلى (اخيستلى) يې شئ، مګر ډېر كلك يې وساتئ چې چېرې درڅخه ونه تښتي، وايي چې په اتلسو درهمو يا په لږ څه ډېرو يا كمو يې خرڅ كړ، نو د هر يو ورور په سر دوه دوه درهمه وررسېدې، يو ورور يې چې (يهودا) نوميده؛ هيڅ برخه يې وانه خيسته.

﴿وَكَانُوا فِيهِ مِنَ الزَّاهِدِينَ﴾ (او وو دغه وروڼه په باب د يوسف كې له بې رغبتانو، يا وو دغه كاروانيان په باب د يوسف كې له بې رغبتانو له جهته د بې فرمانۍ او د تېښتې د ده)، يعنې له دومره ارزانو پلورلو څخه مه متعجب كېږه ! دوى له يوسف عليه السلام څخه دومره بېزاره وو، چې كه ويړيا يې ور پرېښې وى خو لا هم مستبعد او لرې ترې نه وو، هومره پيسې چې د دوى په لاس ورغلې؛ هغه يې غنيمت وګڼلې.

ځينې مفسرين وايي چې په دغه آيت كې د هغه پلورلو ذكر دى؛ چې د قافلې خاوندانو وروسته د مصر له رسېدلو څخه وكړل، كه داسې وي؛ نو ويلى شو چې د لويدلې څيز قدر يې ونه كړ، او له دغې انديښنې څخه چې بيا څوك پرې دعوى ونه كړي، او هم د تښتېدلو عيب يې اورېدلى وو؛ نو ځكه يې په ارزان قيمت وپلوره، والظاهر هو الأول، والله أعلم.

﴿وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِنْ مِصْرَ لِامْرَأَتِهِ أَكْرِمِي مَثْوَاهُ عَسَى أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا وَكَذَلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَى أَمْرِهِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢١﴾﴾

او وويل هغه سړي (عزيز) چې يې اخيستى وو يوسف او وو له اوسيدونكو د مصر ښځې خپلې ته چې په عزت لره ځاى د دغه (يوسف، او ښه قدر او عزت يې كوه !) ښايي چې نفع ورسوي مونږ ته يا به ونيسو مونږ دى ځوى (چې دواړه اولاد نه لرو)، او همداسې (لكه چې نجات مو وركړ يوسف ته له كوهي څخه او عزيز مو مهربان كړى وو پر ده) ځاى او قدرت وركړ مونږ يوسف ته په ځمكه (د مصر) كې، او وښيو مونږ يوسف ته تعبير د خوبونو، او الله غالب دى په كارونو خپلو (چې هيڅوك يې نشي رد كولى) وليكن زيات خلق نه پوهيږي (په دې).

تفسير: وايي كله چې دغه قافله مصر ته ورسېده، ليلام شروع شو، او د مصر د عزيز پر بولۍ دغه معامله پاى ته ورسېده، ده خپلې ښځې زليخا يا راعيل ته وويل: «چې دغه هلك ډېر غوره محبوب، هوښيار او پوه رابرېښي، نو ښايي چې ته يې

ښه په عزت او احترام او پت وساتي ! او د مريانو په شان سلوک ورسره ونه کړي، کېږي چې وروسته له لويېدو څخه ځمونږ په کار راشي، او خپل کاروبار وروسپارو، يا څرنګه چې اولاد نه لرو، دی د خپل ځوی په ځای ودروو.

﴿وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ﴾ الآيه ـ يعني مونږ پخپل کامل قدرت او لطيف تدبير يوسف د ده د ورونو د حسد او رخې (کينې) له ربړو (تکليفونو) او د کوهي له بندي خانې څخه وساته، او د مصر د عزيز کره مو ورسولو، بيا مو د عزيز په زړه کې د هغه محبت او شفقت وغورځولو، او په دغه ډول مو هغه ته په مصر کې يو معزز ځای ورکړ، او د مصريانو په سترګو کې مو هغه وجيه او محبوب وګرځولو، څو دغه د راتلونکو ترقياتو او اعتلاوو د اساس په منزله وګرځي، او د بني اسرائيلو لپاره د مصر د هستوګنې وسيله شي، له هغه سره دا هم منظور وو، چې د مصر له عزيز سره واوسيږي، او له لويانو او مشرانو سره مجلسونه او ملاقاتونه وکړي، څو د سلطنت په رموزو او اشاراتو وپوهيږي، او د ګردو خبرو پر ځايونو باندې د لګولو او کولو کامله سليقه او تجربه ور حاصله شي.

وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا ۚ وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٢٢﴾

او کله چې ورسېد يوسف قوت خپل ته نو ورکړ مونږ ده ته حکم او علم، او همداسې جزا (بدل) ورکوو نيکو کارانو ته.

تفسير: يعني څه مهال (وخت) چې د يوسف ګردې قواوې د کمال حد ته ورسېدې، نو د پاک الله له درباره د عظيم علم او حکمت خاوند وګرځېد، نهايت مشکله عقدې (غوټې) يې په خپل رسيدونکي فهم سره حل کولې، په ډېره ښه توګه او پوهه سره يې د خلقو جرګې او جګړې سره جوړولې، پر ديني دقائقو په ښه ډول سره پوهېده، کومه خبره يې چې په ژبه سره ويله، هغه به يې عملاً هم کوله، او نورو ته به يې ورښووله، د بې عقلانو له اخلاقو قطعًا پاک او صاف وو، په علم الشرائعو پوره ماهر وو، علم الرؤيا او د خوب تعبير د ده مخصوصه برخه وه.

وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَن نَّفْسِهِ وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ ۚ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ ۖ إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٣﴾

او طلب د فرېب وکړ ده لره هغه (ښځې) چې دغه يوسف په کور د هغې کې وو لپاره د نفس د ده، او کلکې يې پورې کړې ټولې دروازې، او بيا وويل دغې ښځې: هله ژر راشه ته ! زه تا لره يمه، وويل يوسف: پناه نيسم په الله پورې، چې بېشکه عزيز مالک خاوند ځما دی چې ښه يې کړې ده ساتنه ځما، (نو زه به ولې خيانت کوم په اهل د ده کې)، بېشکه شان دا دی چې نيکي نه مومي ظالمان (چې د نېکۍ په ځای بد کوي يا زانيان).

تفسير: يعني د يوسف عليه السلام پر حسن او جمال زلېخا مفتونه او مينه شوه، او د زړه ورلو، او مينه کشولو او سد لرې کولو ګرد سامان او اسباب يې ټول کړل، او غوښتل يې چې د يوسف عليه السلام زړه هم بې واکه کړي، د يوه لوري د عيش او نشاط سامان او د نفساني جذباتو د پوره کولو لپاره هر راز سهولتونه او د بل لوري د يوسف عليه السلام شا مدام اوسېدل د زلېخا په کور کې او د زلېخا انتهايي مينه او محبت او شفقت له ده سره، او په ګوښه (ببله) کوټه کې په خپله د ښځې له لوري په بېتابۍ او بې صبرۍ سره داسې غوښتنه کوله او د خپلو او پرديو د تللو او راتللو ګرد ورونه يې وتړل، له بل لوري د ځلميتوب عمر، د قوت زمانه، د مزاج اعتدال، د تجرد ژوندون، دغه ګرد دواعي او اسباب داسې وو؛ چې د هغو له تصادمه او تماسه د ډېرو لويو زاهدانو تقوی هم ګرد ګرد الوځي، مګر هغه څوک چې د پاک الله له طرفه محسن ټاکلی شوی وي، او د علم او حکمت په رنګ سره يې رنګين کړی وي، او د نبوت د عصمت په لوړو (اوچتو) مقامو ختلی وي، نو پر هغه به څوک قدرت او مجال ولري، او څرنګه به د شياطينو په چمبو (فرېبونو) کې

راشي، ده يو د «معاذ الله» لفظ ووايه، چې: «په الله پورې پناه نيسم»، سم له لاسه ګرد شيطاني جالونه او د کړی ګرد ولونه وپرانستلی شول، ځکه هر چا چې د الله تعالی پناه ونيوله؛ په هغه د بل هيچا وار نه چليږي.

تنبيه: ځينو مفسرينو د ﴿إِنَّهُۥ رَبِّيٓ أَحۡسَنَ مَثۡوَايَۖ﴾ ضمير د الله په لوري راجع کړی دی.

وَلَقَدۡ هَمَّتۡ بِهِۦۖ وَهَمَّ بِهَا لَوۡلَآ أَن رَّءَا بُرۡهَٰنَ رَبِّهِۦۚ كَذَٰلِكَ لِنَصۡرِفَ عَنۡهُ ٱلسُّوٓءَ وَٱلۡفَحۡشَآءَۚ إِنَّهُۥ مِنۡ عِبَادِنَا ٱلۡمُخۡلَصِينَ ﴿٢٤﴾

او خامخا په تحقيق قصد کړی وو دغه ښځی (يوسف) ته (د جماع) او (يوسف) به قصد کړی وی دې ښځې ته؛ که نه وی ليدلی يوسف برهان (قاطع دليل) د رب خپل، همداسې (ساتلی دی مونږ يوسف په عصمت سره) لپاره د دې چې وګرځوو مونږ له ده ځنې بد او ناکاره فعل (چې خيانت او زنا ده)، بېشکه دغه (يوسف) له بندګانو مخلصو ځمونږ څخه وو.

تفسير: ځينو مفسرينو د ﴿وَلَقَدۡ هَمَّتۡ بِهِۦ﴾ الآيه ـ داسې ترجمه کړې ده؛ او خامخا په تحقيق ښځې فکر کړی وو د يوسف، او يوسف فکر کړی وو د ښځې، يعنې زلېخا د يوسف عليه السلام د راګېرولو فکر وکړ، او يوسف عليه السلام داسې فکر وکړ چې زه د ښځې د مکر په لومه (دام) کې ونه نښلم، که يوسف عليه السلام د خپل رب حجّت او قدرت نه وی معاينه کړی، نو استقامت او ثابت قدمي به يې مشکله وه.

ځينو مفسرينو ﴿وَهَمَّ بِهَا﴾ يې له ﴿وَلَقَدۡ هَمَّتۡ بِهِۦ﴾ څخه بېل کړی دی، او له ﴿لَوۡلَآ أَن رَّءَا بُرۡهَٰنَ رَبِّهِۦ﴾ سره يې متعلق کړی دی، لکه چې په ﴿إِن كَادَتۡ لَتُبۡدِي بِهِۦ لَوۡلَآ أَن رَّبَطۡنَا عَلَىٰ قَلۡبِهَا﴾ ترکيب کې دی، په دغه وخت مقصود د يوسف عليه السلام په حق کې د «همّ» ثابتول نه، بلکه نفي کول دي، او ترجمه به يې داسې کيږي چې: ښځې د يوسف عليه السلام اراده وکړله، او يوسف عليه السلام به هم د ښځې اراده کړې وی؛ که د خپل رب قدرت او حجّت يې نه وی ليدلی.

«برهان» دليل او حجّت ته وايي، يعنې که يوسف عليه السلام په دغه وخت کې د خپل رب دليل نه وی ليدلی؛ نو پر قلبي ميلان به يې ټګ کولو، ښه ! نو دليل څه وو؟ د زنا هغه عين اليقين حرمت او شناعت وو چې الله تعالی ورښوولی وو.

وَٱسۡتَبَقَا ٱلۡبَابَ وَقَدَّتۡ قَمِيصَهُۥ مِن دُبُرٖ وَأَلۡفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا ٱلۡبَابِۚ قَالَتۡ مَا جَزَآءُ مَنۡ أَرَادَ بِأَهۡلِكَ سُوٓءًا إِلَّآ أَن يُسۡجَنَ أَوۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿٢٥﴾

او سره منډې وهلې دواړو دروازې ته او څيرې کړ (ښځې) کميس د دغه (يوسف) د شا له طرفه او مخامخ شول دوی دواړه مېړه (خاوند) د زلېخا سره دروازې څخه، وويل (زلېخا عزيز ته): چې نه ده جزاء د هغه چا چې اراده يې کړې ده په اهل ستا د بدی مګر دا چې بندي کړ شي، يا عذاب دردناک دی.

تفسير: وړاندې يوسف عليه السلام وو، چې ژر ور وپرانيځي، او د باندې لاړ شي، او وروسته زلېخا د ده په تعاقب کې وه، اتفاقاً د يوسف عليه السلام د کميس وروستنی برخه د زلېخا په لاس کې ولوېده، نو ټينګک يې ونيو، او خپل لوري ته يې راکش کړ، په دغه کش او کوک (راښکلو) کې کميس وشلېد، مګر يوسف عليه السلام په هر ډول چې وو له کوټې څخه د باندې ووت، نو له يوې خوا دوی دواړه سره وړاندې او وروسته په دروازه کې ورسېدل، او له بلې خوا د زلېخا مېړه د مصر عزيز هم راورسېد، نو ژر تر ژره زلېخا په خبرو جوړولو خپله خوله وپرانستله، زلېخا الزام پر يوسف واړاوه، چې ده له ما سره د بدی اراده کړې وه، نو د داسې سړي سزا ښايي دا وي چې په بندي خانه کې وغورځاوه شي، يا بل کوم سخت هېداد (سزا) ورته وټاکلی شي.

قَالَ هِيَ رَاوَدَتْنِي عَنْ نَّفْسِي وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِّنْ أَهْلِهَا إِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ قُبُلٍ فَصَدَقَتْ
وَهُوَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿۲۶﴾ وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۷﴾ فَلَمَّا رَاٰ
قَمِيصَهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ إِنَّهُ مِنْ كَيْدِكُنَّ إِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيمٌ ﴿۲۸﴾ يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا
وَاسْتَغْفِرِي لِذَنْبِكِ إِنَّكِ كُنْتِ مِنَ الْخٰطِئِيْنَ ﴿۲۹﴾

وويل (يوسف) چې همدې طلب كړې دى له ما څخه لپاره د نفس څما (مراد خپل)، او شاهدي وركړه (يوه تى رودونكي) له كورنى د زلېخا څخه (داسې چې اى عزيزه وګوره) كه وو كميس د يوسف څيري كړى شوى د مخې له خوا نو رښتيا وايي زلېخا او دغه (يوسف) له دروغجنانو څخه دى. او كه وو كميس د دغه (يوسف) څيري كړى شوى د شا له لوري؛ نو دروغ وايي زلېخا او يوسف له رښتيا ويونكو څخه دى. نو كله چې وليد (عزيز) كميس د يوسف چې څيري شوى دى د شا له لوري؛ نو وويل (عزيز) چې بېشكه دغه (يو فرېب دى) له فريبونو ستاسو ښځو څخه، بېشكه فرېب ستاسو ښځو ډېر لوى دى. اى يوسف ! واوړه له دې كاره (او پټ د زلېخا وساته، او بيا يې زلېخا ته وويل) او مغفرت وغواړه ګناه خپلې ته، بېشكه چې ته يې له خطاكارانو.

**تفسير:** اوس نو يوسف عليه السلام ناچاره شو چې اصلي خبره ورښكاره كړي، چې زلېخا اراده كړې وه چې څما نفس څما له واكه (اختياره) وباسي، زه وتښتېدم او ځان مي ترې وژغوره (بچ كړو)، دغه جګړه لا پاى ته نه وه رسېدلې؛ چې د زلېخا له كورنى څخه يو شاهد په عجيبې طريقې سره د يوسف عليه السلام په حق كې شاهدي وركړه.

له ځينو روايتونو څنې معلومېږي، چې دغه شاهد يو تى رودونكى هلك وو، چې د الله تعالى په قدرت يې د يوسف عليه السلام د برائت او وجاهت عند الله ښكاره كولو لپاره په غږېدلو پيل وكړ.

او ځينې علماء وايي چې هلك نه وو، بلكه كوم پوه سړى وو، چې داسې يوه پته او نښه يې ور وښوده، والله أعلم.

كه شاهد تى رودونكى هلك وو لكه چې په ځينو معتبرو روايتونو كې دي؛ نو په دې صورت هم دغه د يوه تي رودونكي وينا او داسې شاهدي وركول چې په خاتمه كې د يوسف عليه السلام په حق كې مفيد شي؛ بالاستقلال د يوسف عليه السلام د صداقت دليل وو، د كميس له وړاندې يا له وروسته څيريدلو له شهادته په زائد ډول د يوې علامې او قرينې په شان ښايي وګڼلى شي.

او كه كوم پوه سړي وو؛ نو په ښكاره سره داسې معلومېږي چې دى به په خارجي طريقې سره د حال په حقيقت مطلع شوى وي، مګر ده په نهايت پوهې په داسې يو اصول سره شاهدي ادا كړه، چې هغه د بې طرفانو په نزد هم ډېره معقوله وه، څكه چې كه سم د ښځې له دعوى سره (معاذ الله) يوسف عليه السلام د دې په لوري اقدام كړى وى؛ نو د ده مخ به د ښځې په لوري وه، نو ښكاره ده چې په دغه كش كوك كې د يوسف عليه السلام كميس به د مخې له لوري څيري شوى وو.

او كه د يوسف عليه السلام وينا صحيحه ده چې ښځې زه خپل لوري ته بللم، او زه د دروازې په لوري وتښتېدم، او دې څما د نيولو په مقصد څما تعاقب وكړ؛ نو ښكاره خبره ده چې د ده كميس به د شا له لوري څيري شوى وي، څكه چې په دغه صورت كې يوسف عليه السلام د دې په لوري له سره متوجه نه وو، بلكه هغې ته يې خپله شا ګرځولې په تېښته وو، په هر حال كله چې وليد شو، چې كميس د مخې له لوري نه، بلكه د شا له لوري څيري كړى شوى وو؛ نو عزيز وپوهېد چې دغه ګرد د ښځې مكر او فرېب دى، يوسف عليه السلام هيڅ قصور نه لري، لكه چې ښكاره يې وويل؛ چې زلېخا دغه ډك له فرېبه چاره له هغه قسمه ده چې عموماً ښځې يې كوي.

نو عزيز له يوسف عليه السلام څخه استدعاء وکړه، چې څه تېر شوي دي؛ هغه هېر کړه ! او وروسته له دې نه د دې خبرې ذکر مه کوه ! چې د سختې رسوايي او بدنامۍ موجب دی، او زلېخا ته يې وويل: چې له يوسف عليه السلام څخه يا له الله تعالی د خپل قصور معافي وغواړه ! چې باليقين همدا ستا قُصور دی.

وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا عَن نَّفْسِهِ ۖ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا ۖ إِنَّا لَنَرَاهَا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿۳۰﴾

او وويل يو څو ښځو (له خواصو د پاچا) په ښار (د مصر) کې چې: ښځه د عزيز طلب کوي مريي خپل له نفس د ده (مراد خپل)، په تحقيق څيري کړې ده پرده د زړه د دې ښځې له جهته د محبت (د يوسف يعني ننوتلی دی محبت د يوسف په غلاف د زړه د زلېخا کې)، بېشکه مونږ خامخا وينو زلېخا په ګمراهۍ ښکاره کې (چې خپل مېړه (خاوند) لري او مريي پسې ګرځي).

تفسير: يعني ورو ورو د ټول ښار په ښځو کې داسې ويناوې شروع شوې، چې د عزيز ښځه پر خپل ځلمي کنعاني غلام مفتونه او مينه شوې ده، او غواړي چې ويې لمسوي، او پر خپل ځان يې وغولوي، او د هغه نفس د ده له واکه وباسي، د دې مريي مينې د هغې د زړه په منځ کې ځاي نيولی دی، حال دا چې د داسې يوه معزز منصبدار ښځې دغسې يو حرکت ډېره د شرم خبره ده، چې دا پر خپل مريي مينه شي، او ترې خپل نفساني مقصد وغواړي، څمونږ په فکر په دغې معاملې کې زلېخا په علانيه غلطۍ او ښکاره ناپوهۍ کې ده.

فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَأً وَآتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّينًا وَقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ ۖ فَلَمَّا رَأَيْنَهُ أَكْبَرْنَهُ وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا إِنْ هَٰذَا إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ ﴿۳۱﴾

نو کله چې واورېد (زلېخا غيبت) مکر (فرېب) د دوی؛ نو ولېږه (زلېخا يو څوک) دغو (طعنګرو ښځو) ته او تيار يې کړ دغو ښځو ته مجلس (يا مېلمستيا يا بالښتونه چې ډډې پرې واچوي) او ور يې کړې هرې يوې ښځې ته له دغو نه چوړکی، او وويل (زلېخا يوسف ته): راووځه په دوی (نو راووت)، نو کله چې وليد دوی دغه (يوسف)؛ نو ډېر لوي ښايسته يې وموند (هک پک پاتې او ځانونه ترې هېر شول)، او غوڅ يې کړل لاسونه خپل او وويل دوی: پاکي ده الله ته (له عجز او نقصانه چې داسې صورت يې هم جوړ کړی دی) نه دی دغه انسان، مګر پرښته ده عزتمنده.

تفسير: د ښځو دغو وينااوو ته څکه مکر فرېب وايي، چې د مکارانو په شان به يې پټې پټې خبرې کولې، او پر زلېخا به يې بد ويل، ګواکې دوی د خپلې پاکۍ او عفت اظهار کولو، حال دا چې يوسف عليه السلام د بې مثال حسن او جمال شهرت چې د هرې ښځې غوږونو ته رسېده؛ نو هغوی به د ده په ليدلو پسې کړېدې او ترپېدې او پرې ويلېدې.

هيڅ بعيد او لرې نه دی چې زلېخا د طعنو او تنقيد کوونکو اصلي د زړه مقصد همدا وي، چې زلېخا په قهر کړي، او داسې يوه حرکت ته يې تياره کړي، چې د يوسف عليه السلام د ملاقات او ليدلو سبب وګرځي، يا د زلېخا په زړه کې د هغه نفرت واچوي، او هغوی د خپل ځانونو په لوري د هغه د مائل کېدلو موقع را پيدا کړي.

او دا هم ممکن دي چې زلېخا په دغې معاملې کې له ځينو ښځو سره د زړه خبرې کړې وي، او هغوی د دې د دغو پټو او د زړه خبرو د ساتلو په ځای هغه برسېره کړې وي، او په تنقيد او پيغور ويلو به يې لاس پورې کړی وي، په هر حال د دوی د دغو خبرو او اترو څخه په لفظ د «مکر» سره په تعبير کولو کې دغه ټول احتمالات موجود دي.

﴿اَرۡسَلَتۡ اِلَیۡهِنَّ﴾ الآیه ـ «نو ولیږه زلیخا یو څوک دغو طعنګرو ښځو ته»، یعني ښځو ته یې بلنه وکړه، او مېلمستیا ته یې راغوښتې، او یو مجلس یې ترتیب کړ، چې د هغه د ماکولاتو او خوړو په منځ کې ځینې خواږه داسې هم وو، چې په چړوکیو سره ګرېدل، یا پوټکي به یې ترې لرې کېدل، لکه چې د خوړو ګردې (ټولې) مېوې او نورې د دوی په مخ کې واوښتلې شوې، او په ښه ترتیب سره کېښودی شوې، او د هرې یوې ښځې په لاس کې یوه یوه چړوکی ورکړه شوه، څو د تراشولو وړ (لایق) شیانو په خوراک کې د بلې ښځې د انتظار له کلفته بې غمه وي، کله چې دغه ګرد (ټول) شیان یې جوړ او پوره ترتیبات یې ونیول، یوسف علیه السلام ته چې هم هغلته چېرې نژدې موجود وو؛ غږ یې وکړ چې دلته راشه، په مجرد د راتلو د هغه پر ګردو (ټولو) مېلمنو ښځو باندې د برېښنا په شان یو تاثیر او حرکت پیدا شو، او ښځې د یوسف د حُسن او جمال له دغې یو ناڅاپي ننداره څخه بیخي بې هوشې او بې حواسې شولې، او د بېهوشۍ په حال کې د مېوو په ځای یې خپل لاسونه پرې کړل.

قَالَتۡ فَذٰلِكُنَّ الَّذِیۡ لُمۡتُنَّنِیۡ فِیۡهِ ؕ وَلَقَدۡ رَاوَدۡتُّهٗ عَنۡ نَّفۡسِهٖ فَاسۡتَعۡصَمَ ؕ وَلَئِنۡ لَّمۡ یَفۡعَلۡ مَاۤ اٰمُرُهٗ لَیُسۡجَنَنَّ وَلَیَكُوۡنًا مِّنَ الصّٰغِرِیۡنَ ﴿۳۲﴾

نو وویل (زلیخا دغو ښځو ته) دا همغه ځلمی دی چې ملامته کړې ومه تاسو زه په (محبت د) ده کې، او خامخا په تحقیق طلب کړی وو ما له ده له نفسه د ده؛ نو ځان یې وساته (او څما مطلب یې ونه کړ)، او قسم دی خامخا که ونه کړي هغه څه چې امر کوم زه ده ته؛ نو خامخا به بندي (قید) کړی شي هرومرو (لازماً) او خامخا شي به دی له ذلیلانو (په دې بندیخانه کې).

تفسیر: اوس زلیخا موقع وموندله چې د ښځو د هغو طعنو او تشنیعو غشي بېرته پر هم دوی ورغوځار کړي، ګواکې په دغه وخت کې ﴿فَذٰلِكُنَّ الَّذِیۡ لُمۡتُنَّنِیۡ فِیۡهِ ؕ﴾ په ویلو سره د یوسف صفت وکړو، د دې ټولنې د رنګ او وضعیت له لیدلو سره څنې زلیخا بیخي ځان له لاسه ورکړ، او د هغې پېښې ګرد واقعات یې په ښکاره ډول سره ټکي په ټکي وویل چې: «بېشکه ما غوښت چې د دې کنعاني ځلمي زړه په لاس راوړم، مګر دغه د پاک الله بنده په داسې ډول سره خپل ځان له ما څنې وژغوره (وساته) او لاس یې له ما څنې ووینځه، چې زه ورته حقه حیرانه یمه، او د هغه د عفت او طهارت او قوت بیان تاسې ته له سره نشم کولی» ګواکې الله تعالی د ګرد ښار د خواصو ښځو په ټولنه کې د یوسف علیه السلام د عصمت او عفت کمال او د نزاهت او طهارت ثبوت یې ور وړاندې کړ.

﴿وَلَئِنۡ لَّمۡ یَفۡعَلۡ﴾ الآیه ـ د زلیخا مقصود په دغو خبرو او اترو کې لږ څه نورو ښځو ته د خپلې معذورۍ او نامرادۍ اظهار وو، څو د هغوی زړه خوږي او همدردي حاصله کړی شي، او لږ څه په تحکمي ډول په وېرولو سره د یوسف علیه السلام مرعوبیت وو، چې هغه ووېرېږي او وروسته له دې نه د زلیخا په مراد او مطلب کار وکړي.

کله چې دغو ښځو یوسف علیه السلام ته وویل چې امر ومنه د مولاګۍ خپلې، که نه بندي (قیدي) کېږې، او رېړونه (تکلیفونه) به تېروې.

قَالَ رَبِّ السِّجۡنُ اَحَبُّ اِلَیَّ مِمَّا یَدۡعُوۡنَنِیۡۤ اِلَیۡهِ ۚ وَاِلَّا تَصۡرِفۡ عَنِّیۡ كَیۡدَهُنَّ اَصۡبُ اِلَیۡهِنَّ وَاَكُنۡ مِّنَ الۡجٰهِلِیۡنَ ﴿۳۳﴾

نو وویل (یوسف): ای ربه څما! بندي خانه ډېره خوښه ده څما له هغه کاره چې بولي دا ښځې ما هغه کار ته، (ای الله وګرځوې مکر، فرېب د دوی له مانه)، او که ونه ګرځوې ته له ما څنې مکر فرېب د دې ښځو؛ نو میلان به وکړم زه دوی ته، او بیا به وګرځم (په سبب د دغه میلان) له جاهلانو.

تفسير: معلوميږي چې زليخا د غه د مايوسۍ غوصې، او د مظلوميت ډکې وينا د دې پر نورو هم جنسانو او سيالانو خپل پوره اثر وغورځوه، يا لا له پخوا د دوی په منځ کې سره څه خبرې او اترې به هم شوې وې، په هر حال ليکلي دي، چې په دغه وخت کې ګردو ښځو د يوسف عليه السلام په پوهولو باندې داسې ژبې وپرانستلې: «چې تاته لازم دي، چې د خپلې دغې محسنې او سيدې مېرمنې خبره ومنې ! آخر ته ولې پر دغې غريبې باندې ظلم او تېری کوې؟ او ښايي چې دغې خبرې ته هم ښه فکر وکړې، چې د دغو غاړه غړولو او خبرو نه منلو نتيجه به تاته خامخا ربړونه اومصيبتونه دروړاندې کړي، او بل هيڅ يوه ګټه درته نه رسوي».

نو يوسف عليه السلام په پوره عزم او استقامت د الله تعالى له درباره غوښتنه او دعاء کوله چې: «يا اله العالمينه ! ما د دوی له مکرونو او فريبونو څنې وژغوره (وساته) ! که په دغې سلسلې کې ماته بندي کېدل راپېښيږي؛ نو زه په ډېرې خوشالۍ سره هغې بنديګرۍ ته د معصيت پر ارتکاب ترجيح ورکوم، که ته څما لاس ونه نيسې؛ نو وېرېږم چې زه به بې عقله شمه، او د دوی دغو لمسولو ته به څه تمايل وکړم».

فَٱسۡتَجَابَ لَهُۥ رَبُّهُۥ فَصَرَفَ عَنۡهُ كَيۡدَهُنَّۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ ٣٤

نو قبوله کړه ده ته رب د ده (دا دعا) نو وې ګرځولو له ده څخه فرېب د دوی، بېشکه الله هم دی ښه اورېدونکی ښه عالم دی (په ګردو افعالو).

تفسير: يعنې دی يې په عصمت او عفت په پوره ډول سره ثابت قدم او مستقيم کړ، او د هيچا مکر او فرېب پرې ونه چلېد، او هيڅ اثر يې پرې ونه کړ.

﴿إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلۡعَلِيمُ﴾ يعنې د ګردو دعاوې ښې اوري، او ترې ښه خبردار او پوه دی، شاه صاحب ليکي: «ظاهرا معلوميږي چې دی پخپلې غوښتنې او دعاء سره بندي شوی دی، ليکن الله تعالى د ده دومره دعا قبوله فرمايلې ده، چې د هغوی فرېب يې ترې دفع کړی، نور بندي کېدل د ده په قسمت کې وو، انسان لره ښايي چې د وېرې په وخت کې د خپل ځان لپاره بدي ونه غواړي، او پوره د نېکۍ سوال دې کوي، اګر که هر څه چې کيږي خو همغه چې په قسمت کې ليکلی شوي دي»، په ترمذي شريف کې راغلي دي چې له يوه سړي څخه رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه دعاء واورېده: «اللهم إني أسألك الصبر» «ای الله ! زه له تانه صبر غواړم»، رسول الله مبارک وفرمايل: «سألت الله البلاء فاسأله العافية» «تا له الله تعالى څنې د بلاء طلب وکړ؛ ځکه چې صبر خو پر بلاء کيږي؛ نو ترې عافيت وغواړه».

ثُمَّ بَدَا لَهُم مِّنۢ بَعۡدِ مَا رَأَوُاْ ٱلۡأٓيَٰتِ لَيَسۡجُنُنَّهُۥ حَتَّىٰ حِينٖ ٣٥

نو بيا ښکاره شو دوی ته (يعنې عزيز او تابعانو د عزيز ته) وروسته له هغه چې وليدل دوی دلائل (د پاکۍ د يوسف) چې خامخا په بندي خانه کې به واچوي هرومرو (خامخا) دی تر يو وخت پورې (چې قطع شي خبرې د خلقو، پس بندي کړ شو يوسف).

تفسير: يعنې سره له دې چې د يوسف عليه السلام د برائت او نزاهت ډېر دلائل يې ليدلي وو؛ بيا هم دوی په دغه کې مصلحت وليد، چې تر يوې مودې پورې يوسف عليه السلام بندي کړي، څو عام وګړي او خلق داسې وګڼي چې همدغه يوسف پړ وو، او همغه کمبخته ښځه بې سببه بدنامه شوه، ګواکې هغه تخويف او وېرول چې د زليخا له لوري په بنديتوب سره ورکړی شوي وو؛ په سر ورسول شو.

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيَانِ قَالَ أَحَدُهُمَا إِنِّي أَرَانِي أَعْصِرُ خَمْرًا وَقَالَ الْآخَرُ إِنِّي أَرَانِي أَحْمِلُ فَوْقَ رَأْسِي خُبْزًا تَأْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ نَبِّئْنَا بِتَأْوِيلِهِ إِنَّا نَرَاكَ مِنَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٦﴾

او ننوتل له ده سره په زندان کې دوه ځلمیان، وویل یو له دې دواړو: بېشکه زه وینم ځان خپل (په خوب کې) حال دا چې نچوړوم انګور لپاره د شرابو، او وویل هغه بل چې: بېشکه زه وینم ځان خپل (په خوب کې) حال دا چې بار کړې مې ده د پاسه په سر خپل ډوډۍ چې خوري مرغان له هغې، خبر کړه ته مونږ په تعبیر د دې (هر یوه خوب)، بېشکه مونږ وینو تا له نیکو کارانو (له بندیانو سره، یا د بندیخانې، یا له ښو علماوو د تعبیر څخه).

تفسیر: یعنې په هم دغو ورځو کې دوه ځلمي بندیان هم په بندي خانه کې واچول شول، چې له دوی څخه یو د مصر د پاچا ډوډۍ پخوونکی او بل یې ساقي وو، او دواړه په دغه الزام چې پاچا ته د زهر ورکولو اراده یې درلوده بندیان شوي وو، په بندي خانه کې د یوسف علیه السلام د مروءت، امانت، رښتیا ویل، ښه اخلاق، زیات عبادت کول، ښه معرفت، ښه تعبیر، له خلق الله سره زړه سوی او نورو محاسنو شهرت او آوازه وه، دغه دواړه بندیان هم له یوسف علیه السلام سره ډېر مأنوس (روږدي) شول، او د ډېر محبت او اخلاق اظهار به یې ورته کولو، یوه ورځ دغو دواړو خپل خوبونه ور اظهار کړل.

قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا ذَٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ﴿٣٧﴾

وویل (یوسف) چې: لا نه به وې راغلی تاسې ته طعام چې روزي درکوله شي تاسې ته هغه (طعام) مګر چې خبر به کړم تاسې په تعبیر د دې خوب پخوا له راتلو (د دې طعام) تاسې ته، دا تعبیر له هغه علم نه دی چې ښوولی دی ماته رب ځما، بېشکه ما پرېښې مې دی دین د هغو خلقو چې ایمان نه راوړي پر الله، او حال دا چې دوی په آخرت هم دوی کافران کېدونکي دي.

تفسیر: یوسف علیه السلام ړومبی هغوی ته تسلي ورکړه، چې هرومرو د دغو خوبونو تعبیر تاسې ته ډېر ژر معلومېدونکی دی، او له دغو هرو ورځو خوړو څخه د مخه چې تاسې ته درکول کیږي، هغه به زه دروښیم، لیکن د خوب د تعبیر کولو څخه د مخه یوه ډېره ضروري او مفیده خبره در اوروم، او هغه دا ده چې دغه د تعبیر علم او نور ماته له کومه ځایه حاصل شوی؟ نو په یاد یې ولرئ چې زه کوم کسب ګر کاهن یا منجم نه یم، بلکه ځما د علم سرچینه ربّاني وحیه او الهام دی، چې ماته پاک الله دغه علم او کمال ځکه راښوولی دی، چې ما د همېشه لپاره د کافرانو او باطل پرستانو دین او ملت پرېښی دی، او د خپلو پلرونو او نیکونو د ابراهیم، اسحاق او یعقوب غوندې انبیاوو او مرسلانو د توحید پر دین ځم، او د هغوی لاره مې ځانته غوره کړېده.

ځمونږ له ګردو خبرو څخه لویه او مقدسه د نظر مطمح همدغه خبره ده، چې د دنیا هیڅ یو شیز په هیڅ یوه درجه له پاک الله سره شریک ونه ګرځوو، نه په ذات کې، نه په صفاتو کې، نه په افعالو کې، نه په ربوبیت او معبودیت کې، یوائې د هغه په حضور کې سر ښکته کوو، او له هغه سره محبت لرو، او پر هغه باندې توکل او اعتماد کوو، او خپل مرګ او ژوندون او نور ټول همغه پاک الله ته ورسپارو.

په هر حال یوسف علیه السلام مناسبه موقع لیدلې په نهایت مؤثر ډول سره دغو بندیانو ته د ایمان او توحید په جانب ترغیب او تشویق ورکړ، د انبیاوو همدغه کار او عادت دی، چې د دعوت او د حق د تبلیغ هیڅ یوه مناسبه موقع له

لاسه نه ور کوي، یوسف علیه السلام ولید چې د دغو قیدیانو زړونه ځما په لوري متوجه دي، او هم له ما سره مانوس شوي دي، او د بندیګرۍ په مصیبت کې ګرفتار دي، ښایي چې لږ پاسته او نرم شوي به هم وي، راشه ! په دغه وخت کې ته دې د تبلیغ الحق او د دعوت د فرائضو په ادا کولو سره فائده ترې واخله ! ړومبی دوی ته دیني خبرې وروښیه، بیا یې د خوب تعبیر ووایه ! دغه تسلي یې خو ورته لا له پخوا څخه ور کړې وه، چې د ډوډۍ تر وخت پورې تعبیر به درمعلومیږي، څو دوی د پند او نصیحت له اورېدلو څخه ځانونه ونه باسي، او ښه غوږونه ورته کیږدي.

وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ اٰبَآءِيْٓ اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ۭمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نُّشْرِكَ بِاللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ ۭ ذٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۳۸﴾

او متابعت کړی دی ما د دین د پلرونو خپلو چې ابراهیم او اسحاق او یعقوب دي، نه ښاییږي مونږ ته چې شریک ونیسو په الله پورې، هیڅ شی په هیڅ ځیز کې، دا (توحید) له فضل د الله دی پر مونږ باندې او پر نورو خلقو، ولیکن زیات له خلقو شکر نه وباسي (په دې راتلو د انبیاوو).

تفسیر: یعنې ځمونږ خالص توحید او په ابراهیمي ملت باندې ځمونږ قایم پاتې کېدل نه یواځې ځمونږ په حق کې بلکه د ګرد جهان په حق کې فضل او رحمت دی، لیکن افسوس دی چې ډېر کسان د الله تعالی د دغه لوی نعمت قدر نه کوي، لازم خو داسې وو چې د پاک الله احسان یې منلی وی، او د توحید په سمه او صافه لاره تللي وی، او بالعکس د کفران او شرک او عصیان لاره یې نه وی غوره کړې، حال دا چې دوی بالعکس د ناشکرۍ، شرک او عصیان لارې خپل ځانونو ته غوره کوي.

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ ءَاَرْبَابٌ مُّتَفَرِّقُوْنَ خَيْرٌ اَمِ اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۳۹﴾

ای دوارو ملګرو ځما د زندان ! آیا معبودان او پالونکي متفرق (تار په تار) غوره دي که (هغه) الله (غوره دی چې) یو دی (بې له شریک په الوهیت کې)؟ ډېر قوي غالب دی.

مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اَسْمَآءً سَمَّيْتُمُوْهَآ اَنْتُمْ وَاٰبَآؤُكُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ بِهَا مِنْ سُلْطٰنٍ ۭ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ۭ اَمَرَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ ۭ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۰﴾

عبادت نه کوئ تاسې غیر له الله مګر د څو نومونو چې نومونه مو ایښي دي د هغو تاسې او پلرونو ستاسې، نه دی نازل کړی (رالیږلی) الله په (عبادت د) هغوی کوم برهان حجّت سند، نه دی حکومت (د هیچا) مګر خاص د الله دی، امر یې کړی دی په دې چې عبادت مه کوئ تاسې مګر د همده، دا (عبادت د ده) دین دی سم (او حق دی ښکاره) ولیکن زیات د خلقو نه پوهیږي (په لاره حقه).

تفسیر: یعنې خوشې چتي (بېکاره) بې سنده او بې ځایه له خپل ځانه څه نومونه مو ایښي دي، چې تر هغو لاندې د یوې ذرې په اندازه هم څه حقیقت نشته، او تاسې د همدغو تشو نومونو عبادت کوئ، او تش یې په نامه سره معبود بولئ، په داسې جهل او ناداني ښايي چې سړی وشرمیږي، یعنې له قدیمه راهیسې د انبیاوو علیهم السلام په ژبو دغه حکم مو لیږلی دی چې د پاک الله په عبادت کې بل هیڅوک مه شریکوئ ! ﴿وَسْـَٔلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَآ اَجَعَلْنَا مِنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ اٰلِهَةً يُّعْبَدُوْنَ﴾ (۲۵ جزء د الزخرف (۴۵) آیت (۴) رکوع) یعنې د خالص توحید په لاره کې هیڅ یوه لوړه ژوره نشته، سم صاف سړک دی، چې پر هغه باندې د تللو په وسیله انسان بې له وېرې په اطمینان تر الله تعالی پورې رسیږي، لیکن ډېر کسان له حماقته یا تعصبه پر داسې سمې خبرې هم نه پوهیږي.

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّآ اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا ۚ وَاَمَّا الْاٰخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَّاْسِهٖ ؕ قُضِيَ الْاَمْرُ الَّذِيْ فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ ﴿۴۱﴾

ای دواړو ملګرو ځما د بندیخانې ! هر چې یو له تاسې دواړو ( دی، چې د پاچا ساقي دی)؛ نو وبه څښوي مالك بادار خپل ته شراب (لکه د پخوا په شان)، او هر چه دا بل (د پاچا خبّاز)؛ نو په دار به شي نو خوري به مرغان (غوښې) له سره د ده، فیصله شوی دی کار هغه چې په هغه کې فتوی او تعبیر غوښت تاسې له ما څخه.

تفسیر: د تبلیغ د فرض له اداء کولو څخه وروسته یوسف علیه السلام د دوی د خوبونو تعبیر وفرمایه، هغه چې په خوب کې پاچا ته شراب ورڅښولي دي، د هغه تعبیر همدا دی چې دی به په وینبتیا کې هم بیا خپل پاچا ته شراب ورڅښوي، او هغه بل چې په خوب کې یې لیدلي چې له پاسه د ده له سره مرغان ډوډۍ خوري، د هغه مطلب دا دی چې پر دار باندې خېژولی کیږي، او ځناوران د ده د سر پوستکی هم شکوي او خوري به یې، د قضا او قدر فیصله همدغه ده، چې هغه له سره بېرته ګرځېدونکې نه ده، د هغې خبرې پوښتنه چې تاسې کوله، هغه مې وروښوله، دغه بالکل یوه قطعي او یقیني او پرې کړی شوې خبره ده، چې په کې له سره تخلف نشي کېدی، لکه چې همداسې وشو، ساقي د زهرو ورڅښولو له تهمته بیخي پاك او بريء ووت، او نانوایي د خپل جرم په سزا غرغره او په دار ځوړند شو.

وَقَالَ لِلَّذِيْ ظَنَّ اَنَّهٗ نَاجٍ مِّنْهُمَا اذْكُرْنِيْ عِنْدَ رَبِّكَ ؗ فَاَنْسٰىهُ الشَّيْطٰنُ ذِكْرَ رَبِّهٖ فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِيْنَ ﴿۴۲﴾

او وویل یوسف هغه یوه ته چې یقین یې درلود چې بېشکه دی خلاصېدونکی دی له دې دواړو نه (چې ساقي دی) چې: یاد کړه (مظلومیت ځما) په نزد د مالك خپل (چې خوشې مې کړي له بنده)؛ نو هېر کړ شیطان یادول د یوسف هغه بادار خپل ته، نو پاتې شو یوسف په بندي خانه کې څو کاله (یعنې اوه کاله).

تفسیر: دلته ظن د یقین په معنی دی لکه چې په ﴿الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ﴾ کې دی، یعنې یوسف علیه السلام د دغو دواړو په منځ کې د هغه په نسبت چې متیقن وو چې بريء کېدونکی دی، کله چې له بندي خانې څخه ووت ووېل: چې د پاچا په مخکې ځما یادونه هم وکړه، چې داسې یو بې قصوره سړی د کلونو کلونو راهیسې په بندي خانې کې پروت دی، د مبالغې هیڅ ضرورت نه دی، ځما کوم حال او احوال چې تا پخپلو سترګو لیدلي دي؛ کټمټ (هوبهو) همغه ووایه !.

﴿فَاَنْسٰىهُ الشَّيْطٰنُ﴾ الآیه ـ یعنې شیطان د دغه خلاص شوي بندي په زړه کې مختلفې وسوسې او خیالات وغورځول، او داسې یې غافل کړ چې د خپل دغه لوی محسن «یوسف علیه السلام» تذکره یې تر کلونو کلونو پورې ونه کړه، او له سره یې په یاد هم پاتې نشو، او بالنتیجه یوسف علیه السلام څو کاله نور هم په بندي خانه کې پاتې شو.

له ډېرو مدتونو څخه وروسته کله چې پاچا یو خوب ولید، چې د هغه په تعبیر باندې هیڅوك ونه پوهېدل؛ نو دلته د دغه سړي (ساقي) یوسف په یاد شو، لکه چې وروسته راځي: ﴿وَقَالَ الَّذِيْ نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ اُمَّةٍ﴾ الآیه ـ د هېرولو نسبت د شیطان په لوري ځکه وکړ شو، چې د وساوسو او د نورو د القاء ذریعه ده، چې دنسیان سبب ګرځي، د موسی علیه السلام د سفر ملګري هم ویلي وو: ﴿وَمَآ اَنْسٰنِيْهُ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ﴾ (۱۵ جزء د الکهف سورت (۶۳) آیت (۹) رکوع).

ليكن په هر شر كې الله تعالى كومه د خير خوا هرو مرو (خامخا) ږدي، دلته هم اګر كه د نسيان نتيجه د بنديګرۍ د تطويل په صورت راڅرګنده شوه؛ خو بيا هم د شاه صاحب د نکتې له پيدا كولو سره سم داسې يو تنبيه ورته وشوه، چې يو نبي لره نه ښايي چې تش په ظاهري اسبابو او وسائلو زړه وتړي، بلكه ابن جرير او بغوي او نورو له ځينو اسلافو څخه نقل كړى دى چې هغوى د ﴿فَأَنسَاهُ الشَّيْطَانُ ذِكْرَ رَبِّهِ﴾ ضمير د يوسف عليه السلام په لوري راجع كړى دى، ګواكې ﴿اذْكُرْنِي عِندَ رَبِّكَ﴾ هغه بندي ته ويل چې خپل بادار ته څما ذكر وكړه ! حال دا چې پر ده لازم وو چې د ګردو ظاهري اسبابو او وسائلو سره يې پخپله هم د پاك الله په دربار كې خپل عرض او غوښتنه كوله.

وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّي أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعَ سُنبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ ۖ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي رُؤْيَايَ إِن كُنتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ ﴿٤٣﴾

او وويل پاچا (وروسته له اوو كلونو): بېشكه ما ولېدلې په خوب كې اووه غواوې څربې چې خوري دې (څربو غواوو لره) اووه نورې خوارې غواوې، او (بيا مې ولېدل) اووه وږي شنه او نور اووه مې وليدل وچ (چې پر دغو شنو لمدو ورتاو شول)، اى ډلې د درباريانو ! فتوى (تعبير) راكړئ تاسې ټول ماته په دې خوب څما كې كه يئ تاسې چې د خوب تعبير كولى شئ.

قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ ۖ وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ ﴿٤٤﴾

نو وويل (دغو درباريانو): دا ګډوډ (تخيلي) خوبونه دي، او نه يو مونږ په تعبيرونو د خوشې خيالي خوبونو باندې پوهېدونكي.

تفسير: معلومېږي چې هغه خلق له دې فن څخه جاهلان وو، نو ځكه د خپلې ناپوهۍ په اقرار كې وشرمېدل، او داسې يوه خبره يې جوړه كړه چې دا له سره خوب نه بلكه خوشې چټي (بېكاره) او پرېشان خيالات دي، چې ډېر كله انسان ته د خوب په حالت كې داسې ګډوډ خيالات او چرتونه ورپېښېږي، چې له سره د دقّت او اعتناء وړ او لايق نه دي، او نه مونږ د داسې خوبونو په تعبير كې څه علم لرو، ځكه چې دغه د علم التعبير تر اصولو لاندې نه راځي.

وَقَالَ الَّذِي نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ أَنَا أُنَبِّئُكُم بِتَأْوِيلِهِ فَأَرْسِلُونِ ﴿٤٥﴾

او وويل هغه سړي چې خلاص شوى وو له هغو دواړو (يعني ساقي) او په ياد يې شو (يوسف) پس له ډېرې مودې چې زه به خبر كړم تاسې په تعبير د دې خوب؛ نو ولېږئ تاسې ما (يوسف زنداني ته).

تفسير: اوس د خوب په سلسله كې د هغه ساقي چې له بنديګرۍ څخه خوشې شوى وو يوسف عليه السلام په ياد كې راغى، ده پاچا او نورو واكوالانو (وزراوو) او اهل دربار ته يې وويل: كه ماته لږ څه تر بنديخانې پورې د تللو اجازه راكړه شي؛ نو زه به ډېر ژر د دې خوب ډېر صحيح تعبير تاسې ته راوړم، په بنديخانه كې يو مقدس پرښته صورت بزرګ شته، چې په علم التعبير كې ډېر ماهر دى، ممكن دى چې ده به د خپل خوب قصه هم هغوى ته كړې وي، زه د دغه تعبير لپاره د ده خدمت ته حاضرېږم، وروسته له دې نه چې ورته اجازه وركړه شوه؛ نو د پاچا ساقي د يوسف عليه السلام په خدمت كې مشرف شو، او داسې عرض او غوښتنه يې ورڅخه وكړه:

يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنبُلَاتٍ خُضْرٍ
وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ لَّعَلِّي أَرْجِعُ إِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٤٦﴾

اى يوسفه ! اى ډېره رښتينه ! تعبير دخوب راكړه مونږ ته په اوو غواوو څربو كې چې وخوري دې څربو لره اووه (نورې) خوارې غواوې، او په اوو وږيو شنو كې، او اوو نورو وچو وږيو كې (چې له هغو شنو چاپېر دي) ښايي چې زه بېرته لاړ شم (سره له تعبيره) خلقو ته (چې پاچا او درباريان يې دي) لپاره د دې چې دوى پوه شي (په تعبير د خوب د پاچا او قدر ستا).

قَالَ تَزْرَعُونَ سَبْعَ سِنِينَ دَأَبًا فَمَا حَصَدتُّمْ فَذَرُوهُ فِي سُنبُلِهِ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تَأْكُلُونَ ﴿٤٧﴾ ثُمَّ يَأْتِي مِن
بَعْدِ ذَٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَأْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّا تُحْصِنُونَ ﴿٤٨﴾ ثُمَّ يَأْتِي مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ
يُغَاثُ النَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿٤٩﴾

وويل (يوسف) چې كرئ به تاسې (هر قسم فصل) اووه كاله پرله پسې په ډېر زيار (كوښښ) سره ډېر، نو هر هغه چې ورېبل تاسې نو پرېږدئ هغه غله په وږي خپل كې مګر لږ شانې له هغه چې تاسې يې خورئ (نو هغومره قدر ترې پاک كړئ). بيا به راشي وروسته له دغو (اووه كلونو ودانو) اووه نور (كلونه) سخت چې وبه خوري (اهل د دې اوو سختو كلونو) هغه غلې چې پخوا ذخيره كړې وي تاسې لپاره د دې مګر لږ شانې له هغه چې تاسې ساتئ (يې تخم ته). بيا به راشي وروسته له دې (كلونو د قحط) يو كال (چې پنځلسم به وي) چې په هغه كې به فرياد رسي وكړه شي د خلقو (په غلو او بارانونو) او په دې كې به ونښېځي (نچوړ كړي) خلق (مېوې او غوړې دانې).

تفسير: يوسف عليه السلام د خوب د تعبير په ورښوولو كې نه څه ځنډ (ايسارتيا) وكوله، او نه يې كوم شرط ورته كېښود، او نه يې هغه سړى شرمنده كړ، چې ته مې وروسته له دغومره كلونو اوس ولې خبر اخلې؟ له دې نه د انبياوو عليهم السلام د اخلاقو اندازه له ورا معلومېږي، بيا هغه يواځې د خوب تعبير غوښتى وو، مګر ده درې شيان ورعطا كړل: تعبير، تدبير، تبشير.

د يوسف عليه السلام د كلام حاصل دا دى، چې اووه غټې څربې غواوې او اووه شنه وږي هغه اووه كلونه دي چې په كې پرله پسې متواتر خوښې او هوسايي (ارام) به وي، د ځمكو حاصلات به ډېر كيږي، حيوانات او نباتات به ډېره ترقي او وده كوي، وروسته له دې نه به اووه كلونه قحط راځي، چې په هغه كې به هغه ګردې پخوانۍ ذخيرې خوړلې كيږي، او بيخي به يې په پاى رسوي، يواځې د راتلونكي كال د تخم شيندلو لپاره به لږ څه پاتې كيږي، دغه اووه كاله همغه خوارې غواوې او وچ وږي دي چې څربې غواوې او شنه وږي به خوري، او ختم كوي يې.

د تعبير ښوولو په ضمن كې يوسف عليه السلام د شفقت او زړه سوى او رحم على خلق الله لامله د يوه تدبير تلقين هم وفرمايه، چې په ړومبنيو اوو كلونو كې هغه ښه او ډېر حاصلات په لاس ورځي، ښايي چې په ډېر حفاظت سره يې وساتئ، او په كفايت شعارې سره يې ذخيره وكړئ، هومره غله مو چې د خوړلو او كرلو لپاره پكارېږي؛ هغه بېله كړئ، او لږ لږ يې په ډېر احتياط سره خورئ، او نورې غلې همغسې په خپلو وږيو كې پرېدئ، چې له چنجيانو او نورو مضره وو حشراتو څخه په ښه شان سره وساتلې شي، او د اوو كلونو حاصلات د څوارلسو كلونو په كار ورشي، كه داسې ونه كړئ؛ نو له قحط او غم سره به مو مقابله ډېره ګرانه وي.

د دغه تعبير او تدبير ښوولو څخه وروسته يې هغوی ته يو بشارت هم واورا وه، چې غالباً به ورته د وحيې په وسيله معلومه شوي وي، يعنې وروسته له اوو کلونو قحطي څخه کوم کمال چې راځي؛ په هغه کې به د الله تعالی له خوا ستاسې فرياد رسی کيږي، او ښه پريمانه بارانونه به اوري، (فصلونه، غلې، دانې او نور محصولات به په ډير افراط سره پيدا کيږي، له انګورو (کورو) خُرما او نورو ښښځونکو (نچوړونکي) شيانو څخه به خلق شراب جوړوي، دغه وروستنی خبره يې د سائل له حاله سره موافقه وکړه، ځکه د ده کار همدغه وو.

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ ۖ فَلَمَّا جَاءَهُ الرَّسُولُ قَالَ ارْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَاسْأَلْهُ مَا بَالُ النِّسْوَةِ اللَّاتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ﴿٥٠﴾

او وويل پاچا: راولئ تاسې ماته دغه (يوسف)، نو کله چې راغی دغه (يوسف ته) استازی (د پاچا) وويل يوسف چې: بېرته لاړ شه! مالک بادار خپل ته نو پوښتنه وکړه چې څه حال وو د ښځو هغو چې غوځ کړي يې وو لاسونه خپل، بېشکه چې رب ځما په کيدونو (مکرونو) د دوی ښه خبردار دی.

تفسير: پاچا پخوا له دې نه د خپل ساقي د تذکرې په اثر د يوسف عليه السلام معتقد شوی وو، اوس چې داسې موزون او په زړه پورې تعبير او د رعاياوو خواخوږي او زړه سوی او ښه تدبير يې واورېد، نو د يوسف علم، فضل، عقل، پوهې، ښه اخلاق سخت د پاچا په زړه ولوېد، او على الفور يې امر صادر کړ چې: «داسې پوه سړی دې ژر تر ژره ځما حضور ته راحاضر کړ شي، چې زه يې زيارت وکړم، او ترې مستفيد شم، او سم د ده د مرتبې او قابليته سره يې عزت وکړم».

قاصد سم له لاسه دغه شاهي پيغام د يوسف عليه السلام په خدمت کې ورساوه، مګر د يوسف عليه السلام په نظر د ده د ديني او اخلاقي وضعيت برتري او صفايي له ډېر اعلا الأعلى دنيوي عزت او وجاهت څخه هم ډېر لوړ او مهم وو، دی ښه پوهېده چې د نبي الله په نسبت د خلقو ډېره لږه بدګماني هم د هدايت او ارشاد په کارونو کې ډېر زيات اشکال او سخت ضرر پېښولی شي، که زه د پاچاهی فرمان په اثر په پټه خوله له بندي خانې څخه ووځم، او د هغه تهمت په سلسله چې زه له کلونو کلونو راهيسې د قيد او بنديګرۍ ذلت تېروم دهغه په قطعي ډول استيصال ونشي؛ نو ډېر امکان لري چې ډېر ناواقفه خلق به ځما د عصمت په نسبت څه تردد او شبهه ولري، او حاسدان به څه مهال (وخت) وروسته له همدغو بې اصلو اثراتو څخه بيا استفاده وکړي، بيا به کومه حيله او پلمه راته جوړه کړي.

نو د دغو مصالحو لامله يوسف عليه السلام د پاچاهی حکم په امتثال کې چالاکي ونه کړه، بلکه د نهايت صبر او استقلال مظاهره يې وکړه، او قاصد ته يې وويل: چې ته دې خپل بادار ته لاړ شه، او ترې پوښتنه وکړه چې: «آيا تاسې ته د هغو ښځو څه حقيقت معلوم شوی دی چې د مېلمستيا په موقع کې يې خپل لاسونه پرې کړي وو»، يوسف عليه السلام ته د هغو ښځو نومونه او پېژندګلو به له کومه معلوم وي، او داسې خيال به يې کړی وي چې دغسې مهمې (خاص) واقعې به هرومرو خپل عمومي شهرت حاصل کړی وي، نو ځکه د هغې واقعې يو ممتاز جزء د لاسونو پرې کول يې ظاهر کړه، او پاچا ته يې توجه ورکړه، چې د دغې مشهورې او معروفې قصې تفتيش او تحقيق وکړي، غالبا اوس به هغه ښځې تاسې ته دغه خبره درڅرګنده کړي، چې تقصير د چا دی؟.

د صحيحينو شريفينو په حديث کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د صدّيق يوسف ستاينه په دغو الفاظو سره فرمايلې ده: «لو لبثت في السجن ما لبث يوسف لأجبت الداعي»، «که زه دومره مدت بندي پاتې کېدم چې يوسف عليه السلام بندي پاتې وو، نو د بلونکي اجابت به مې کړی وه، يعنې فوراً به ورسره تلم»، محققين وايي چې په دې

کې د يوسف عليه السلام د صبر تحمل او تعريف او په لطيف رنګ سره د ده د کامل عبوديت اظهار د رب العزّت په دربار کې دی.

لنډه يې دا چې ساقي راغی او پاچا يې له ګردې ماجرا څخه پوره خبردار کړ، نو پاچا هغه ښځې سره له زليخا راحاضرې کړې او:

قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِۦ ۚ قُلْنَ حَٰشَ لِلَّهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِن سُوٓءٍ ۚ قَالَتِ ٱمْرَأَتُ ٱلْعَزِيزِ ٱلْـَٰٔنَ حَصْحَصَ ٱلْحَقُّ أَنَا۠ رَٰوَدتُّهُۥ عَن نَّفْسِهِۦ وَإِنَّهُۥ لَمِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿٥١﴾

وويل (پاچا هغو ښځو ته) چې څه حال وو ستاسې کله چې تاسې طلب کړ (او فرېب مو ورکاوه) يوسف ته لپاره د تېر ايستلو د نفس د ده (نو ميلان يې وکړ تاسې ته؟ که نه)، وويل ټولو ښځو: پاکي ده الله ته، نه يو پوهيدلي مونږ په دغه (يوسف) باندې له هيڅ بدی، وويل ښځې د عزيز چې: اوس ظاهر شو حق (رښتيا خبره) ما طلب کړی وو په فرېب لپاره د تېر ايستلو د نفس د ده (چې خپل مراد ترې واخلم) او بېشکه يوسف خامخا له صادقينو (رښتينو) څخه دی.

تفسير: باچا د پوښتنې عنوان داسې غوره کړ، چې ګواکې دی له دې پېښې نه لا له پخوا څخه خبر دی، ځو دوی د باچا په مخکې دروغ ويلو ته ځغرد (کوښښ) ونه کړي، او هم د يوسف عليه السلام د صبر، تحمل او استقامت اثر به پرې لوېدلی وي، چې هغه بې د برائت له اظهاره له بندي خانې څخه وتل نه خوښوي.

او په ﴿إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ﴾ فرمايلو سره د دوی کيد راښکاروي، او له بل لوري ساقي او نورو به اصلي واقعات ده ته اورولي وي، چې له هغو څخه به هم د يوسف عليه السلام نزاهت او د ښځو د مکائدو تاييد په لاس ورغلی وي.

د ګردو ښځو له متفقه شهادت څخه وروسته پخپله زليخا هم په صاف ډول سره اقرار وکړ، چې قصور ځما دی، يوسف بيخي رښتين دی.

ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِٱلْغَيْبِ وَأَنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِي كَيْدَ ٱلْخَآئِنِينَ ﴿٥٢﴾

دغه (پوښتنه مې ځکه وکړه) چې پوه شي (عزيز) چې بېشکه ما خيانت نه دی کړی د ده سره په پسې شا هم، او بېشکه چې الله نه برابروي کيد مکر د خيانتګرانو (او په مقصد يې نه رسوي).

تفسير: يعنې دغومره تحقيق او تفتيش د دې لامله وکړ شو، چې د نبوت عصمت او ديانت بالکل ښکاره شي، او ګرد خلق سره وپوهيږي چې د خائنانو او دغابازانو فرېب ته الله پاک برې نه ورکوي، لکه چې د دغو ګردو ښځو فرېب ونه چلېدو، او بالآخر حق، حق او پخپل ځای ودرېد.

کله چې له دغو خبرو څخه يو قسم تکبر او غرور معلومېده په عمل خپل باندې؛ نو وويل يوسف عليه السلام لپاره د دفعې د دغې چې:

وَمَآ أُبَرِّئُ نَفْسِيٓ ۚ إِنَّ ٱلنَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِٱلسُّوٓءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓ ۚ إِنَّ رَبِّي غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٥٣﴾

او زه نه پاکوم نفس خپل (په دې شان چې نه کوي ميل بدي ته ځکه چې) بېشکه نفس خامخا ډېر امر کوونکی دی (هر وخت) په بدۍ سره مګر هغه (نفس) چې رحم مهرباني پرې کړې وي رب ځما چې بېشکه رب ځما ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: څرنګه چې یوسف علیه السلام په خپل برائت باندې ډېر زور غورځولی وو، لکه چې پخوا مو ولیکل امکان یې درلود چې کوم سطحي سړی هغه ته په فخر او ناز او غرور او اعجاب سره تشبیه ورکړي؛ نو ځکه یوسف علیه السلام په خپله خپل نزاهت حقیقت څرګند (ښکاره کړ)، چې زه پر خپل دغه عصمت څه فخر او غرور نه کوم، او نه پر خپل طهارت اعتماد کولی شم، دا محض د پاك الله رحمت او اعانت دی، چې یو نفس له بدۍ څخه منع کوي، همدغه خصوصي رحمت د انبیاوو علیهم السلام کفیل او ضامن دی، که نه د انساني نفس کار عموماً د بدۍ په لوري ترغیب ورکول وو، که د الله تعالی خصوصي توفیق او لاس نیونه نه وئ؛ نو ځما نفس به هم د نورو بشریه وو نفوسو په شان وئ.

په ﴿إِنَّ رَبِّي غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ سره یې اشاره وکړه کله چې «نفس امّاره» توبه وکړي، «نفس لوّامه» ګرځي، نو الله د ده ګرد پخواني تقصیرات ښښي، بلکه ورو ورو پخپلې مهربانۍ سره یې د «نفس مطمئنه» تر درجې پورې رسوي.

تنبیه: حافظ ابن تیمیه او ابن کثیر (رحمهما الله تعالی) او نور له ﴿ذَٰلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ﴾ څخه تر ﴿غَفُورٌ رَّحِيمٌ﴾ پورې د زلیخا مقوله دروي، یعنې زلیخا د ﴿أَنَا رَاوَدتُّهُ عَن نَّفْسِهِ﴾ اقرار وکړ، او ویې ویل چې: په دغه اقرار او اعتراف سره زه عزیز ته د دغې خبرې ورڅرګندول (ښکاره کول) غواړم، چې ما د عزیز په غیاب او نشتوالي کې کوم لوی خیانت نه دی کړی، بېشکه د یوسف علیه السلام لمسولو ته مې اراده کړې وه، مګر ځما دغه مراودت پر یوسف علیه السلام باندې هیڅ کوم اثر ونه غورځاوه.

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِي ۖ فَلَمَّا كَلَّمَهُ قَالَ إِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ ﴿٥٤﴾

او وویل پاچا چې راولئ (تاسې ای مقربینو ځما) ماته دغه (یوسف) چې خالص کړم دغه لپاره (د کارونو) د ځان خپل (یعنې ځما به مشیر خاص وي)، نو کله چې خبرې وکړې (باچا) له دغه (یوسف) سره، وویل (باچا) چې: بېشکه ته نن ورځ په نزد ځمونږ خاوند د مرتبې امانتګر یې.

تفسیر: باچا یې څه لا له پخوا څخه معتقد شوی وو، کله یې چې بالمشافهه خبرې ورسره وکړې، نو بیخي یې مخلص او معتقد شو، او حکم یې ورکړ، چې له نن ورځې څخه وروسته تاسې له مونږ سره په ډېر عزت او احترام ډېر معتبر او پتیالی (عزتمند) اوسېږئ، شاه صاحب (رحمه الله تعالی) لیکي چې: «اوس یې د عزیز سره علاقه پرې کړه، او دی یې خپل مصاحب وګرځاوه».

قَالَ اجْعَلْنِي عَلَىٰ خَزَائِنِ الْأَرْضِ ۖ إِنِّي حَفِيظٌ عَلِيمٌ ﴿٥٥﴾

وویل (یوسف علیه السلام باچا ته) چې: مقرّر کړه ما پر خزانو د ځمکې (د مصر) بېشکه زه ښه ساتونکی (د اموالو) ښه پوه یم (په وجوه د تصرفاتو او جذب د فوائدو، نو پاچا یوسف ته د خزائنو کنجي ګانې وروسپارلې، او د سلطنت ټول اختیارات یې ورته وکړل).

تفسیر: یعنې د دولت حفاظت هم په پوره ډول سره کولی شم، او د هغه د عوائدو او مخارجو له ذرائعو او له حسابه او کتابه هم ښه باخبره او واقف یم، یوسف علیه السلام پخپله خوښه او غوښتنه د نقدي او د جنسي او د حاصلاتو د ځمکې اداري امور په خپل لاس کې واخیستل، څو په دغه وسیله سره عامو خلکو ته پوره ګټه ورسولی شي، خصوصاً په راتلونکي قحط کې په ډېر ښه انتظام او سلوك سره د مخلوقاتو خبر نیونه وکړی شي، او د حکومت مالي وضعیت په ښه ډول سره ټینګ او مضبوط وساتلی شي، له دې نه ظاهرېږي چې انبیاء علیهم السلام دنیوي عقل هم پوره لري، او دغه هم څرګنده شوه، چې د خلائقو د خدمت لپاره مالیاتي په چارو کې لاس وهل د نبوّت له مقامه یا د عظمت له شان سره مخالفت نه لري.

که يو سړی سره له نېک نيتی داسې وګڼي، چې د هغه منصب لپاره زه اهل يم، او له نورو څنې به دغه کار په ښه شان سره نه جوړېږي، نو دغه د مسلمانانو د خير غوښتلو او نفع رسولو له امله که د هغه غوښتنه يا مطالبه وکړي؛ کولی يې شي.

د عبد الرحمن بن سمرة (رضي الله تعالى عنه) له يوه حديثه معلومېږي «هر څوک چې پخپله د امارت طالب شي؛ نو د هغه بار د ده پر اوږو باندې اچولی کېږي» (او غيبي اعانت ورسره مدد او مرسته نه کوي)، او دغه په هغه وخت کې ده چې دغه طلب محض نفس پاللو او د جاه او د لوړوالي د خوښولو او نورو دنيوي اغراضو په بناء وي، والله أعلم.

وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ ۚ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ ۖ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿٥٦﴾

او په مثل د دغه (مذکوره نعمت او احسان) ځای (قدرت) ورکړ مونږ يوسف ته په ځمکه (د مصر) کې، چې ځای به يې نيوه (يعني اوسېده) له دغې ځمکې څخه هر چېرته چې به يې خوښه وه، رسوو مونږ رحمت نعمت خپل هر چاته چې اراده وفرمايو مونږ، او نه ضايع کوو مونږ اجر (بدل) د محسنانو (نيکوکارانو).

تفسير: يوسف عليه السلام هر چېرې چې غوښته ښکته کېده، او هر هغه شی يې چې زړه غوښته به يې تصرف کاوه، ګواکې «ريان بن وليد» په نامه سره باچا وو، او په حقيقت کې يوسف عليه السلام پاچاهي کوله.

وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ لِلَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿٥٧﴾

او خامخا اجر (بدل) د آخرت خير (ډېر غوره) دی (له دنيوي اجره) هغه کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی، او وو دوی چې پرهېزګاري يې کوله (له شرک او فواحشو).

تفسير: هر هغه چې د نېکی او ښېګڼی (فائدې) لاره غوره کړې ده؛ الله تعالى هغه ته په دنيا کې که اراده وفرمايي د هغه خوږه ثمره ورکوي، اعم له دې چې ثروت (مالداري) وي يا حکومت ـ عيش وي يا عشرت، خوږ ژوندون يا لذت، قلبي غنا وي يا قناعت، نو يوسف عليه السلام ته دغه ګرد شيان ورعنايت فرمايلي شوي وو، پاتې شول د آخرت اجرونه؛ هغه يو ايماندار او پرهېزکار ته هلته له دنيوي اجرونو څخه خورا (ډېر) بهتر اجرونه ور په برخه کېږي.

شاه صاحب (رحمه الله تعالى) ليکي: «دغه جواب شو د هغه سؤال چې د ابراهيم عليه السلام اولاده په څه ډول له شام څخه مصر ته راغله، او بيان وشو چې ورونړو په څه ډول سره يوسف عليه السلام له کوره لرې وغورځوه؟ چې خوار او ذليل شي، او الله تعالى څرنګه ورته عزت وباښه، او پر ملک يې واک او اختيار ورکړ؟ او همداسې څمونږ محبوب رسول محمد صلى الله عليه وسلم سره هم وشو».

وَجَاءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُوا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ ﴿٥٨﴾

او راغلل ورونړه د يوسف (له کنعانه مصر ته) نو راننوتل په دغه (يوسف) باندې پس وپېژندل (يوسف) دوی، او دوی دغه (يوسف) لره ناپېژندونکي وو (په سبب د حجاب يا اوږدوالي د زمانې).

تفسير: په «موضح القرآن» کې دي، کله چې يوسف د مصر پر مملکت خپلواک او مختار شو، نو سم له همغه خوب سره په اوو وړومبنيو کلونو کې يې ښه وداني وکړه، او د ګردو ځمکو غلې او دانې يې راغونډې کړې،

او ذخیره یې کړې، بیا د قحط په اوو وروستنیو کلونو کې یو متوسط نرخ یې وټاکه، او هغه به یې پر مصریانو او نورو پردیسیانو برابر پلورلې (خرڅولې)، مګر پردیسیانو ته یې سړي په سر له یوه اوښ بار (ځتې) څخه زیات نه ورکاوه.

نو په دغه وسیله سره خلق الله له قحط څخه نجات ومونډ، او د باچاهی خزانه ډکه شوه، او په هر لوري کې دغه انګازه خوره شوه، چې غله په مصر کې ارزانه ده، نو ځکه د ده وروڼه هم د غلې د پېرودلو لپاره مصر ته راغلل، د دوی هیئت او قیافه او وضع او قطع کې دومره تغییر او تبدیل نه وو شوی، دلته یوسف به هم پرله پسې د خپلو وروڼو پوښتنه او پلټنه کوله، او وروسته له هغه ځای د رسېدلو څخه د دوی د نامه او د نسبې پوښتنه به یې هم کړې وي، لکه چې د سلاطینو او اعیانو ملاقات کې عموماً دغه اصول جریان لري، لکه چې په ځینو تفاسیرو کې راغلي دي، چې هغوی یوسف علیه السلام ته خپل نوم او صفات بیان کړل، ځرنګه چې یوسف علیه السلام د بېلتون په وخت کې ډېر وړوکی وو، او هم د ده د وروڼو فکر او خیال دې لوري ته نه تلو، چې ګوندې دا به یوسف علیه السلام وي، او نه له غټانو او باچاهانو څخه عام خلق داسې جرأت کولی شي، چې له دوی ځنې د هغوی د نامه نسب او نورو شیانو پوښتنې وکړي، نو ځکه دوی یوسف ونشو پېژندلی.

وَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ قَالَ ائْتُونِي بِأَخٍ لَّكُم مِّنْ أَبِيكُمْ ۚ أَلَا تَرَوْنَ أَنِّي أُوفِي الْكَيْلَ وَأَنَا خَيْرُ الْمُنزِلِينَ ﴿٥٩﴾

او کله چې تیار کړ (یوسف) دوی ته اسباب د سفر د دوی نو وویل (یوسف وروڼو خپلو ته) چې راولئ تاسې ماته هغه ورور ستاسې چې له پلار ستاسې دی ! آیا نه وینئ تاسې چې بېشکه زه پوره درکومه پیمانه او زه غوره د مېلمستیا ورکوونکو یم.

تفسیر: یوسف علیه السلام د خپلو وروڼو ښه مېلمستیا عزت اومدارات وکړه، او د سړي په سر یو اوښ غله یې دوی ته ورکړه، د دغه عالي اخلاق او خاصې مهرباني د لیدلو په اثر وایي، چې دوی داسې غوښتنې وکړې چې ځمونږ یو علاتي ورور (بنیامین) ځمونږ د سپین ږیري غمجن پلار له لوري د ده د خدمت او تسکین لپاره په (کنعان) کې پاتې دی، ځکه چې د ده بل عیني ورور یوسف علیه السلام چې پر پلار بې اندازې ګران وو، ډېره موده پخوا له دې نه په کومې بېدیا کې هلاک دی، که د (بنیامین) د برخې غله هم مونږ ته مرحمت وکړی شي؛ نو ډېره مهرباني به وي، یوسف علیه السلام وفرمایل چې: په دې ډول سره د غائب حصه ورکول له اصوله مخالف دي، ځکه چې زه ورکوم بار په شمار د انسانانو، نه په شمار د حیواناتو، کله چې تاسې بیا راځئ نو (بنیامین) هم له خپله ځانه سره راولئ، نو هلته به د هغه برخه هم تاسې ته درکوله کیږي، تاسې ځما د اخلاقه او د مېلمانه پاللو څخه بالمشاهده خبر شوي یئ، چې زه پوره ورکومه پیمانه، او بېرته نه نیسم حق د هیچا، نو آیا وروسته له دې نه تاسې ته د خپل وړوکي ورور په راوستلو کې څه تردّد او اندېښنه پیښېدلی شي؟ بلکه هیڅ تردد او اندېښنه له سره مه کوئ، او له ځانه سره یې راولئ !.

فَإِن لَّمْ تَأْتُونِي بِهِ فَلَا كَيْلَ لَكُمْ عِندِي وَلَا تَقْرَبُونِ ﴿٦٠﴾

نو که رانه وست تاسې ما ته دغه (علاّتي ورور خپل) نو له سره نشته پیمانه (د غلې) تاسې ته ما سره، او مه رانژدې کېږئ تاسې بیا ماته (په مصر کې).

تفسیر: یعني که هغه ورور مو له خپله ځانه سره را نه وست؛ نو داسې ګڼلی شئ چې تاسې دروغ وایئ، او خلاف الأصول د یوه اوښ ځته وړل مو مقصد دي، نو د هغه په سزا کې وروسته له دې نه نه یواځې ستاسې برخې سوځي، بلکه ما ته یا ځما په مملکت کې ستاسې د راتګ اجازه هم سلب کیږي.

قَالُوْا سَنُرَاوِدُ عَنْهُ اَبَاهُ وَاِنَّا لَفٰعِلُوْنَ ﴿٦١﴾

وويل دوی: ژر به په کوښښ سره غواړو دی له پلاره د ده، او بېشکه مونږ خامخا کوونکي يو (د دې کار).

**تفسير:** يعنې اګر که له پلاره د هغه بېلتون (جدايي) ډېر مشکل دی، خو بيا هم مونږ کوښښ کوو، چې خپل پلار په يو تدبير سره خوښ او راضي کړو، هيله (اميد) شته چې په يو ډول په دغه مقصد کې برى ومومو.

وَقَالَ لِفِتْيٰنِهِ اجْعَلُوْا بِضَاعَتَهُمْ فِيْ رِحَالِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَعْرِفُوْنَهَآ اِذَا انْقَلَبُوْٓا اِلٰٓى اَهْلِهِمْ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿٦٢﴾

او وويل (يوسف) مريو (پيمانه ګرو) خپلو ته چې: کېږدئ هغه پنګه (ثمن) د دوی په بارونو د دوی کې په پټه سره، ښايېږي چې دوی وپېژني دا (پنګه خپله او احسان ځما) کله چې بېرته لاړ شي دوی اهل خپل ته، ښايېږي چې دوی به بيا بېرته راشي (او را به ولي وررور ځما).

**تفسير:** يعنې کومه پنګه (سرمايه) چې دوی ورکړې وه، او د هغې په بدله کې يې غله پېرودلې وه، حکم يې ورکړ چې هغه دې هم په پټه سره د دوی په اسبابونو کې بېرته کېږدي، څو کله چې بېرته خپل کورته وررسېږي، او اسبابونه پرانيځي؛ نو وګوري چې له غلې سره د هغوی پنګې (سرمايې) هم بېرته ورکړې شوي دي، چې بيا دوهم ځل راتګ ته زيات ترغيب او تشويق ور پيدا شي، او پخپلو زړونو کې ووايي، چې داسې کريم النفس باچا چېرې پيدا کېږي، او ممکن دي چې د قيمت د نه پيدا کېدلو له سببه بيا دوی د مصر له راتګه واوړي، او که پنګه يې په لاس وي؛ نو هرومرو به بيا راځي، نو ځکه يې هغه پنګه ورمسترده کړه.

ځيني وايي چې: يوسف عليه السلام له خپلو ورونړو څخه د غلې قيمت اخيستل له مروته او کرمه لرې ليده، نو ځکه يې بېرته ورمسترده کړ.

فَلَمَّا رَجَعُوْٓا اِلٰٓى اَبِيْهِمْ قَالُوْا يٰٓاَبَانَا مُنِعَ مِنَّا الْكَيْلُ فَاَرْسِلْ مَعَنَآ اَخَانَا نَكْتَلْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴿٦٣﴾

نو کله چې بېرته وګرځېدل دوی پلار خپل ته؛ نو وويل دوی: ای پلاره ځمونږ! منع کړې شوې ده له مونږ نه پيمانه (که راسره لاړ نشي «بنيامين») نو ولېږه له مونږ سره ورور ځمونږ چې پيمانه واخلو (هم د ده او هم خپله) او بېشکه مونږ ده لره خامخا ساتونکي يو (له مضراتو).

**تفسير:** يعنې د يوسف عليه السلام په شان د ده په نسبت انديښنه او تردد مه کوئ، اوس مونږ پخپله وېرېدلي او هوښيار شوي يو، او په پوره ډول سره به د ده حفاظت کوو.

قَالَ هَلْ اٰمَنُكُمْ عَلَيْهِ اِلَّا كَمَآ اَمِنْتُكُمْ عَلٰٓى اَخِيْهِ مِنْ قَبْلُ ۚ فَاللّٰهُ خَيْرٌ حٰفِظًا ۠ وَّهُوَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿٦٤﴾

وويل (يعقوب): آيا امينان کړم تاسې په بنيامين (هم بلکه نه مو شم امينان ګرځولی په ده باندې په هيڅ شان سره) مګر (په دې شان سره) لکه چې امينان کړي مې وئ تاسې پر وررور د ده (يوسف) پخوا له دې نه، نو الله خير (ډېر غوره) دی له جهته د ساتنې او همدی دی ډېر مهربان د ټولو مهربانانو.

**تفسير:** يعنې همدغه د ﴿وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ﴾ الفاظ تاسې د يوسف د بيولو په وخت کې هم ويلي وو، نو بيا به زه ستاسې پر دغې وعدې څرنګه اعتبار کولی شم، هو اوس شديد ضرورت دی، چې له هغه څخه اغماض (چشم پوشي) نشي کېدلی، نو

څکه له تاسو سره د هغه تلل حتمي دي، نو زه يې پر پاك الله سپارم چې همغه الله يې پخپل حفاظت او مهرباني کې روغ رمټ وساتي، او ما يوسف عليه السلام له بېلتون څخه وروسته له بل مصيبت څخه پخپل فضل او کرم سره وساتي.

وَلَمَّا فَتَحُوا مَتَاعَهُمْ وَجَدُوا بِضَاعَتَهُمْ رُدَّتْ إِلَيْهِمْ ۖ قَالُوا يَا أَبَانَا مَا نَبْغِي ۖ هَٰذِهِ بِضَاعَتُنَا رُدَّتْ إِلَيْنَا ۖ وَنَمِيرُ أَهْلَنَا وَنَحْفَظُ أَخَانَا وَنَزْدَادُ كَيْلَ بَعِيرٍ ۖ ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ ﴿٦٥﴾

او کله چې پرانستل دوی بارونه خپل؛ وموندله دوی پنګه (سرمايه) خپله چې بېرته رالېږلې شوې وه دوی ته، نو وويل دوی: ای پلاره څمونږ ! څه به (لا زيات احسان) غواړو مونږ؟ دا ده هغه پنګه (سرمايه) څمونږ چې بېرته رد کړی شوې ده مونږ ته، او (بيا ځو چې) غله راوړو اهل خپل ته، او ساتو به ورور خپل او زيات به راوړو بار د اوښ (يعنې د بنيامين برخه) دا (يو بار د اوښ) پيمانه ده اسانه.

تفسير: يعنې د داسې اسانې پيمانې پر بښودل نه دي په کار، په هر ډول چې کيږي (بنيامين) له مونږ سره پر بږدئ چې لاړ شي.

ځينو د ﴿ذَٰلِكَ كَيْلٌ يَسِيرٌ﴾ اشاره د هغې غلې په لوري کړې ده، چې پخوا يې راوړې وه، او «يسير» يې د «قليل» په معنى اخيستی دی، يعنې هغه غله چې پخوا له دې نه راوړې شوې ده؛ هغه د حاجت په اعتبار لږه ده، او د دې قحط په زمانه کې تر کاله پورې به بس کيږي؟ لهذا ضرور دي چې په هر ډول سره چې کيږي، ښايي چې مونږ بيا لاړ شو، او د ګردو برخې له ځانه سره راوړو.

قَالَ لَنْ أُرْسِلَهُ مَعَكُمْ حَتَّىٰ تُؤْتُونِ مَوْثِقًا مِنَ اللَّهِ لَتَأْتُنَّنِي بِهِ إِلَّا أَنْ يُحَاطَ بِكُمْ ۖ فَلَمَّا آتَوْهُ مَوْثِقَهُمْ قَالَ اللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴿٦٦﴾

وويل (يعقوب خپلو ځامنو ته): له سره به ونه لېږم هغه (بنيامين) له تاسې سره تر هغه پورې چې راکړئ تاسې ماته عهد محکم د الله (په دې خبره) چې خامخا بېرته به راولئ ماته هرومرو دی مګر که چاپېروالی وکړ شي پر تاسې باندې (چې مړه يا مغلوب شئ)؛ نو کله چې ورکړه دوی دغه پلار ته وعده محکمه خپله؛ نو وويل (يعقوب ځامنو خپلو ته) چې: الله په هغه څه چې وايو يې مونږ وکيل (شاهد) دی.

تفسير: يعنې که د الله تعالى له تقدير سره کومه داسې حادثه ور د مخه شوه، چې په هغې کې تاسې ګرد سره پړه او مغلوبان شوئ، او د نجات هيڅ يوه لاره درپاتې نشي، نو هلته زه هيڅ نشم ويلی، هو ! سم له خپله توانه او مقدوره تر خپل ژوند پورې د بنيامين په حفاظت کې څه قصور مه کوئ، سره د دې پوخ عهد او پيمان اخيستلو او قسمونو يادولو د زيات تاکيد او اهتمام په ډول يې وفرمايل: ﴿قَالَ اللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ﴾ يعنې هغه عهد او پيمان چې مونږ په دغه وخت کې کوو، هغه ګرد پاك الله ته سپارو، که چا په هغه کې څه خيانت يا بد عهدي وکړه؛ نو همغه الله به يې په سزا رسوي.

وَقَالَ يَا بَنِيَّ لَا تَدْخُلُوا مِنْ بَابٍ وَاحِدٍ وَادْخُلُوا مِنْ أَبْوَابٍ مُتَفَرِّقَةٍ ۖ وَمَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ شَيْءٍ ۖ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ ۖ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ ۖ وَعَلَيْهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُتَوَكِّلُونَ ﴿٦٧﴾

او وويل (يعقوب) له شفقته: ای ځامنو څما ! مه ننوځئ تاسې (مصر ته) له دروازې يوې (چې نظر وانخلئ) او ننوځئ (دوه دوه يا درې درې) له دروازو بېلو بېلو څخه، اونشم دفع کولی زه له تاسې

نه له (قضا) د الله نه هيڅ شی، نه دی حکم (په قضا سره) مګر خاص الله ته دی، خاص پر هم ده توکل کړی دی ما، او هم په همده باندې نو توکل دې وکړي توکل کوونکي.

تفسير: يعقوب عليه السلام ته داسې خيال پيدا شو چې د يوه پلار يوولسو وجيهه وو او ښايسته وو ځامنو په يوه خاص شان او اجتماعي هيئت سره په ښار کې ننوتل، خصوصاً وروسته له هغه ښه سلوکه چې د مصر د عزيز يوسف عليه السلام له لوري له هغوی سره شوی وو، او خلقو هغه مشاهده کړی وو؛ داسې يو شی دی، چې د هغه په لوري د عمومو سترګې هرومرو اړولې کيږي، «العين حقّ» نظر لګېدل هم يو حقيقت لري.

يعقوب عليه السلام خپلو ځامنو ته له بده نظره او د حسد او نورو مکروهاتو د ژغورنې لپاره دغه ظاهري تلقين وفرمايه، چې سره تيت او پرک (منتشر) شئ، او په معمولي حيثيت سره د ښار له مختلفو دروازو څخه ننوځئ، نه چې خامخا د عوام الناسو له جانبه تاسې نظر شئ، او له دې سره يې متصل دغه وفرمايل چې: د کومې چارې او تدبير په کولو سره هم هيڅوک د قضا او قدر فيصلې نشي ګرځولی، په ګردو کائناتو کې يواځې د پاک الله حکم چليږي، ځمونږ دغه ګرد انتظامات د الله تعالی د حکم په مقابل کې بېکاره دي.

هو ! تدبير او چاره لټول هم د هغه په حکم سره کولی شي، ځکه چې هغه يې راجائز درولي دي، انسان ته لازم دي چې خپل د ژغورنې او ساتنې تدبير وکړي، مګر اعتماد او توکل دې يواځې پر پاک الله ولري، ګواکې دغه خبره يې خپلو ځامنو ته واوروله، چې تاسې هم ځما په شان د زړه له کومي (منځ) د الله تعالی پر حفاظت متوکلان اوسئ، او تش په تدابيرو مه غره کېږئ. !.

وَلَمَّا دَخَلُوا مِنْ حَيْثُ أَمَرَهُمْ أَبُوهُم مَّا كَانَ يُغْنِي عَنْهُم مِّنَ اللَّهِ مِن شَيْءٍ إِلَّا حَاجَةً فِي نَفْسِ يَعْقُوبَ قَضَاهَا ۚ وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦٨﴾

او کله چې ننوتل دوی (مصر ته) له هغه ځايه چې امر کړی وو دوی ته پلار د دوی (چې له مختلفو دروازو ننوځئ !)؛ نه وو دغه ننوتل له بېلو بېلو دروازو چې دفع کړي له دوی نه قضا د الله څخه هيڅ څيز، ليکن يو حاجت چې په نفس د يعقوب کې وو اداء يې کړ هغه، او بېشکه دغه (يعقوب) خامخا خاوند د پوهې وو په سبب د دې چې خبردار کړی وو مونږ دی، ليکن زيات د خلقو نه پوهيږي (په دې چې اوړي تقدير په تدبير).

وَلَمَّا دَخَلُوا عَلَىٰ يُوسُفَ آوَىٰ إِلَيْهِ أَخَاهُ ۖ قَالَ إِنِّي أَنَا أَخُوكَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٦٩﴾

او کله چې ورننوتل دغه (ورونړه) پر يوسف نو رانژدې يې کړ خپل ځان ته ورور خپل (بنيامين) وويل (يوسف په پټه بنيامين ته): زه يقيناً هم دا زه يم ورور ستا (يوسف) نو مه خفه کېږه په هغو کارونو چې وو دوی چې کول يې (پخوا له مونږ سره).

تفسير: يوسف عليه السلام (بنيامين) سره ممتازه معامله وکړه، او په پټه يې دی پوه کړ، چې زه ستا حقيقي ورور (يوسف) يم، هغه مظالم چې پر مونږ دغو علاتي ورونو کړي دي، چې زه يې له پلاره جلا (جدا) کړم، او په کوهي کې يې وغورځولم، او زه يې مريي خرڅند کړم، او ځمونږ پلار او نور يې ځما د فراق په صدمو کې مبتلا کړل، يا اوس د دې لوري د راتلو په وخت کې چې له تا سره کومه سختي کړېده، له دغه خبرو څخه له سره مه خفه کېږه، اوس وخت رارسېدلی دی، چې ځمونږ دغه ګرد غمونه غلط او پورته او ورک شي، او وروسته له سختيو پاک الله تعالی مو راحت عزت او پت را په برخه کړی.

فَلَمَّا جَهَّزَهُم بِجَهَازِهِمْ جَعَلَ السِّقَايَةَ فِي رَحْلِ أَخِيهِ ثُمَّ أَذَّنَ مُؤَذِّنٌ أَيَّتُهَا الْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ ﴿٧٠﴾

نو كله چې تيار يې كړل دوى ته اسباب د سفر د دوى؛ نو كېښوده جام د اوبو څښلو (د باچا پټ) په بار د ورور خپل كې، نو غږ وكړ غږ كوونكي: او (خلقو د) قافلې !(ودرېږئ چې) بېشكه تاسې خامخا غله يئ.

تفسير: يعنې كله چې د يوسف عليه السلام په حكم د دوى غلې يې ورباركړې، او د سفر ګرد سامان يې ور تيار شو، نو يو جام د اوبو څښلو يې د خپل ورور (بنيامين) په اسباب كې كېښود (چې د زرو يا زبرجدو په جواهرو چړاو وو، بيا چې غله د ېره ګرانه شوه نو هغه يې پيمانه كړه) څه مهال (وخت) چې كاروان (جوپه) له ښاره د باندې ووته؛ نو پيره داران د هغه جام په لټولو پسې ولوېدل، بالآخر هغوى ته پر دغې قافلې شبهه پيدا شوه، څرنګه چې قافله ښايسته لرې تللې وه، نو پيره دارانو ورپسې نارې سورې كړې، چې اى كاروانيانو !ودرېږئ ! چې تاسې يقيناً غله په نظر راځئ.

قَالُوا وَأَقْبَلُوا عَلَيْهِم مَّاذَا تَفْقِدُونَ ﴿٧١﴾

وويل (وروڼو د يوسف) او مخونه يې راواړول پر دغو (نوكرانو د يوسف) چې څه شى دى هغه چې تاسې وركـ كړى دى (او لټوئ يې؟).

تفسير: يعنې مونږ ولې خامخا غله بولئ؟ كه ستاسې كوم شى وركـ شوى وي؛ نو هغه راوښيئ مونږ خو چېرې لرې نه يو تللي، راشئ څمونږ مالونه او اسبابونه راولټوئ !.

قَالُوا نَفْقِدُ صُوَاعَ الْمَلِكِ وَلِمَن جَاءَ بِهِ حِمْلُ بَعِيرٍ وَأَنَا بِهِ زَعِيمٌ ﴿٧٢﴾

وويل دوى: وركه كړې ده مونږ پيمانه د باچا، او دې هغه چا ته چې راېې وړه پيمانه بار د يوه اوښ، او زه په دې (بار) ضامن يم (چې ور يې كړم پيدا كوونكي ته).

تفسير: پيره دارانو وويل چې: مونږ د باچا د اوبو څښلو جام يا د غلې پيمانه لټوو، چې وركـ شوى دى، كه كوم سړى يې بې له حيلې او حجّته راحاضر او راوړي؛ نو د اوښ د څټې غَلّه به ورانعام او وروبښو، او زه يې ذمه وار يمه چې ور رسوم به يې.

قَالُوا تَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمْتُم مَّا جِئْنَا لِنُفْسِدَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كُنَّا سَارِقِينَ ﴿٧٣﴾

وويل دوى: قسم دى په الله، خامخا په تحقيق پوهه يئ تاسې چې نه يو راغلي مونږ لپاره د دې چې فساد وكړو په ځمكه (مصر) كې، او هر ګز نه يو مونږ غلا كوونكي(د دې جام).

قَالُوا فَمَا جَزَاؤُهُ إِن كُنتُمْ كَاذِبِينَ ﴿٧٤﴾

نو وويل (بيا دغو نوكرانو) چې څه به وي جزاء د هغه (جام يا د سارق) كه (ښكاره) شوئ تاسې دروغجنان؟ .

تفسير: محافظينو وويل چې: تاسې خوشې چتې (بېكاره) خبرې ولې كوئ؟ اوس مونږ ستاسې كالي (جامې) او اسباب لټوو، كه دغه مسروقه مال له تاسې ووت؛ نو بيا به څه وواييئ؟ او څه به وكړئ؟ او سزا به مو څه وي؟ .

قَالُوا جَزَاؤُهُ مَن وُجِدَ فِي رَحْلِهِ فَهُوَ جَزَاؤُهُ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الظَّالِمِينَ ﴿٧٥﴾

نو وويل (بيا وروڼو د يوسف) چې: سزا د دې (غلا نيول د) هغه چا دي چې وموندلى شوه (دغه پيمانه) په بار د ده کې؛ نو همدى دى سزا د هغه، همداسې سزا ورکوو مونږ ظالمانو (غلو) ته.

تفسير: يعنې دغه چې غل مريي کيږي د مال د خاوند؛ په ابراهيمي شريعت کې د غلو سزا وه، يعنې له هر چا څخه چې د غلا مال ووځي؛ هغه به تر يوه کال پورې د غلام په حيثيت د مال د خاوند سره پاتې کيږي، د يوسف عليه السلام وروڼو سم له خپله شرعي قانونه سره بې له تأمّله د سزا ذکر وکړ، ځکه چې دوى پوره متيقن وو، چې مونږ غله نه يو، او نه د غلا مال امکان لري، چې له مونږ څخه ووځي، نو ځکه دوى په خپل اقرار سره ملزَم او ونيول شول، او بېرته د مصر ښار ته بوتلل شول، د باچا د دربار سره مخامخ بارونه يې ترې واړول.

فَبَدَأَ بِأَوْعِيَتِهِمْ قَبْلَ وِعَاءِ أَخِيهِ ثُمَّ اسْتَخْرَجَهَا مِن وِعَاءِ أَخِيهِ كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ ﴿٧٦﴾

نو شروع وکړه (يوسف يا جارچي په لټولو د) بارونو د دوى ړومبى له باره د ورور د ده (لپاره د دفعې د تهمت، نو بيا يې ونه موند په هغو کې) بيا يې را وويستله دغه (پيمانه) له باره د (سکه) ورور خپل، همدارنګه چل ښوولى وو مونږ يوسف ته، نه وو دغه (يوسف) چې ونيسي ورور خپل په دين (قانون) د باچا (مصر) کې مګر چې اراده وفرمايله الله (دغه چل يې ورونښود)، پورته کوو مونږ (په علم او حکمت سره) مرتبې د هر چا چې اراده وفرمايو مونږ، او له پاسه د هر خاوند د علم لوى عالم دى.

تفسير: يعنې د دغو ويناوو څخه وروسته محافظينو دوى د مصر عزيز يوسف ته بوتلل، او دغه ګرده پېښه يې ور واوروله، يوسف عليه السلام د تفتيش او تحقيق امر صادر کړ، ړومبى يې د نورو وروڼو د بارونو په سپړلو شروع وکړه، او د دوى ښتې بسترې خورې او نور يې وليدل، خو له دوى څخه هغه جام را ونه ووت، بالآخر د بنيامين د اسبابو د لټولو وار راغى، او هغه جام ترې راووت.

﴿كَذَٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ﴾ الآيه - يعنې د ده د وروڼو له ژبې څخه پخپله دغه خبره راووته، چې له هر چا څخه چې دغه مال ووځي، هغه غلام وګرځوه ! نو پر هم دغې ونيول شو، که نه دغه خو د مصر د حکومت قانون نه وو، که داسې تدبير نه کېده چې پخپلو اقرارونو کې راګير شي؛ نو د مصري قانون له مخې هيڅ يو داسې کوم صورت چې د هغه له مخې د بنيامين د بېرته ستنولو (راواپس کولو) سند کېدى شو؛ نه وو موجود.

﴿نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَّن نَّشَاءُ﴾ يعنې د هر چا په نسبت چې اراده وفرمايي؛ حکمت او تدبير ورښيي، يا په خپل لطيف تدبير سره لوړتيا ورکوي، وګوره هغه ځلميان چې په غلا سره يې له خپله پلاره يوسف غلا کړ، او په څو روپو يې وپلوره (خرڅ کړ)؛ نن د غلو په حيثيت د يوسف په مخ کې و لاړ دي، ښايي په دې ډول سره د دوى د پخوانيو غلطيو کفاره وي.

قَالُوٓا۟ إِن يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُۥ مِن قَبْلُ ۚ فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِى نَفْسِهِۦ وَلَمْ يُبْدِهَا لَهُمْ ۚ قَالَ أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۖ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ ﴿٧٧﴾

نو وويل (وروڼو د يوسف): كه غلا وكړه دغه (بنيامين؛ نو هيڅ عجيبه نه ده، ځكه چې) پس په تحقيق سره غلا كړې وه (سكني) ورور د ده هم پخوا له دې نه، نو پټه وساتله دغه (خبره) يوسف په نفس خپل كې او ښكاره يې نه كړه (هغه خبره) دوی ته، وويل (يوسف پټ په خپل زړه كې) چې: تاسې ډېر بد يئ له جهته د مرتبې، او الله ښه عالم دی په هغه خبره چې تاسې يې بيانوئ (په حق د يوسف كې).

تفسير: دغه اشاره د يوسف عليه السلام په لوري ده، دوی د خپل پاكې ښوولو لپاره محض د ناحقه ويلو او عناد څرګندولو (ښكاره كولو) لپاره د «بنيامين» جرم پوخ كړ، او د دومره مودې له تېرېدلو څخه وروسته هم پر معصوم يوسف عليه السلام باندې د دروغو الزام اړولو څخه ونه شرمېدل.

مفسرينو په دغه موقع كې ډېرې قصې بيان كړې دي، چې د هغو په لوري د يوسف عليه السلام وروڼو د غلا لفظ كې اشاره كړې وه، او د هغوی دنقل حاجت دلته نشته.

﴿فَأَسَرَّهَا يُوسُفُ فِى نَفْسِهِۦ﴾ الآيه ـ يعنې سره د داسې سخت لفظ اورېدلو بيا هم يوسف عليه السلام خپل ځان ساته، ځكه چې د الله تعالی حكمت د دوی د پټې خبرې په څرګندېدلو او افشاء مقتضي نه وه، يوسف عليه السلام دغه خبره هم پخپل زړه كې پټه وساتله، او پخپل ځواب كې يې د دوی د اتهام حقيقت ور څرګند نه كړ، بلكه پخپل زړه كې يې وويل: ﴿أَنتُمْ شَرٌّ مَّكَانًا ۖ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَصِفُونَ﴾ يعنې بالعكس غله پر كوتوال خوله آچوي، او تاسې ما هم غل بولئ، حال دا چې تاسې داسې يوه غلا كړې ده، چې خپل ورور مو له پلاره غلا او ناحقه مو هغه په څو روپيو وپريا سودا كړی دی، باقي ځما د غلا حال خو پاك الله ته معلوم دی.

ځينو مفسرينو له ﴿شَرٌّ مَّكَانًا﴾ الآيه ـ څخه داسې مطلب اخيستی دی؛ چې يوسف عليه السلام هغوی ته خطاب كوي، چې تاسې خورا ډېر بد خلق يئ، اوس خو مو وويل چې: ﴿وَمَا كُنَّا سَٰرِقِينَ﴾ «مونږ له غلو څخه نه يو» اوس چې مو د يوه ورور له كاليو څخه هغه مال راڅرګند شو، هغه سره هغه بل بېګناه ورور يې هم ملوّث كوئ، الله تعالی ښه پوهيږي چې تاسې پخپلې دغې وينا كې تر كوم ځای پورې رښتين يئ، همغه به تاسې ته د دغه غلط بيان سزا دركوي.

(كله چې يوسف عليه السلام «بنيامين» خپلو سړيو ته وركړ؛ نو وروڼه يې په زاری شول او)

قَالُوا۟ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْعَزِيزُ إِنَّ لَهُۥٓ أَبًا شَيْخًا كَبِيرًا فَخُذْ أَحَدَنَا مَكَانَهُۥٓ ۖ إِنَّا نَرَىٰكَ مِنَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٧٨﴾

وويل دوی: ای عزيزه ! بېشكه ده لره يو پلار دی زوړ ډېر معمّر (چې پس له يوسفه له ده سره مينه كوي)، نو ونيسه يو له مونږه په ځای د ده (يرغمل او دی راپرېږده)، بېشكه مونږ وينو تا له احسان كوونكو څخه.

قَالَ مَعَاذَ ٱللَّهِ أَن نَّأْخُذَ إِلَّا مَن وَجَدْنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ إِنَّآ إِذًا لَّظَٰلِمُونَ ﴿٧٩﴾

وويل (يوسف عليه السلام وروڼو خپلو ته): پناه غواړو په الله پورې چې ونيسو مونږ (بېګناه) مګر هغه څوك چې موندلي دي مونږ اسباب خپل په نزد د هغه، (كه ونيسو په ځای د هغه بل څوك)؛ نو مونږ به په هغه وخت كې خامخا له ظالمانو اوسو.

تفسير: يعنې مونږ پر الله تعالی له دې نه پناه نيسو، چې بې له سببه د يوه په ځای بل ونيسو، مونږ خو يواځې همغه سړی راستنوو (واپس کوو) چې له هغه سره مو خپل شيز موندلی دی، او هغه «بنيامين» دی، چې د عيني ورورولی لامله به له مونږ سره پاتې کيږي.

دلته هم د ﴿إِلَّا مَن وَجَدۡنَا مَتَٰعَنَا عِندَهُۥٓ﴾ په ځای «الا من سرق» نه دی ويلی، چې لنډه او مختصره وه، ځکه چې هغه له واقع څخه مخالفه وه، او که د هغه په ځای بل څوک ونيسو؛ نو بېشکه چې مونږ ستاسې په فتوی کې خامخا له ظالمانو به اوسو په ابراهيمي دين کې، ځکه چې دی خو مونږ ستاسې په فتوی نيولی دی، يعنې که د مجرم په بدله کې بل کوم بې قصوره ونيسو؛ نو ستاسې له خياله او قانونه مخالف او غلط له انصافه يو کار دی.

فَلَمَّا ٱسۡتَيۡـَٔسُواْ مِنۡهُ خَلَصُواْ نَجِيّٗاۖ قَالَ كَبِيرُهُمۡ أَلَمۡ تَعۡلَمُوٓاْ أَنَّ أَبَاكُمۡ قَدۡ أَخَذَ عَلَيۡكُم مَّوۡثِقٗا مِّنَ ٱللَّهِ وَمِن قَبۡلُ مَا فَرَّطتُمۡ فِي يُوسُفَۖ فَلَنۡ أَبۡرَحَ ٱلۡأَرۡضَ حَتَّىٰ يَأۡذَنَ لِيٓ أَبِيٓ أَوۡ يَحۡكُمَ ٱللَّهُ لِيۖ وَهُوَ خَيۡرُ ٱلۡحَٰكِمِينَ ۝٨٠

نو کله چې نااميده شول دوی له دغه (يوسف په نه قبلولو د سوال د خلاصي د بنيامين)؛ نو ګوښه (بېل) شول دوی په دې حال کې چې مشوره کوونکي وو (پخپلو منځونو کې)، وويل مشر د دوی (په عمر کې يا په فکر کې): آيا نه پوهېږئ چې بېشکه پلار ستاسې په تحقيق اخيستې وه له تاسې (په بېرته بيولو د بنيامين) سخته وعده له وعدو د الله (په حفظ د بنيامين کې او اوس دا حادثه راپېښه شوه)، او پخوا له دې نه تقصير کړی وو تاسې په حق د يوسف کې، نو له سره به زه نه خوځېږم له دې ځمکې (مصر) څخه تر هغه پورې چې اذن راکړي ماته پلار ځما (په رجوع سره کنعان ته) يا حکم وکړي الله ځما لپاره (په وتلو سره له مصره، يا په خلاصېدو د ورور ځما)، او همدغه (الله) ډېر غوره د حکم کوونکو دی.

تفسير: ﴿مَا فَرَّطتُمۡ﴾ کې «ما» زائده ده، ځيني وايي: مصدريه ده، او کيږي چې موصوله شي، کله چې دوی له يوسف عليه السلام څخه دغه ځواب واورېد، او مايوس شول؛ نو له ډلې څخه ګوښې (بېل) شول، پخپلو منځونو کې يې سره مشوره وکړه، د اکثرو رأيه پر دغه قرار ونيوه، چې ښايي وطن ته بېرته لاړ شو، د دوی په منځ کې هغه ورور چې د عمر يا د عقل يا د نورو وجوهو په اعتبار مشر وو، ويې ويل چې: مونږ به خپل پلار ته په کومو سترګو او مخ سره مخامخ شو؟ چې هغه له مونږ څخه عهد اخيستی وو، او د هغه ځواب به څه ووايو؟ يو تقصير خو له مونږ څخه پخوا له دې نه د يوسف عليه السلام په معامله کې شوی دی، چې د هغه اثر تر نن ورځې پورې موجود دی، اوس که مونږ (بنيامين) هم دلته پرېږدو، او ټول لاړ شو؛ نو ډېره سخته بې غيرتي او بې حميّتي به وي، نو واضح دې وي چې زه خو له سره له دې ځايه هيچېرې خوځېدونکی نه يم، تر څو چې خپل لوی آبا ماته د بېرته راتللو حکم راکړي، يا په دغه منځ د پاک الله تعالی له لوري بله کومه فيصله وشي، مثلا له تقديره ځما د مرګ نبټه پوره شي او مړ شم، يا په بل تدبير سره (بنيامين) ته نجات ورکړم.

تنبيه: دغه ويونکی به غالبا همغه ورور وي، چې د يوسف عليه السلام په معامله کې يې ړومبی هم پسته مشوره ورکړې وه چې ﴿لَا تَقۡتُلُواْ يُوسُفَ﴾.

ٱرۡجِعُوٓاْ إِلَىٰٓ أَبِيكُمۡ فَقُولُواْ يَٰٓأَبَانَآ إِنَّ ٱبۡنَكَ سَرَقَ وَمَا شَهِدۡنَآ إِلَّا بِمَا عَلِمۡنَا وَمَا كُنَّا لِلۡغَيۡبِ حَٰفِظِينَ ۝٨١

بېرته لاړ شئ تاسې پلار خپل ته نو ووايئ (ورته) اى پلاره ځمونږ ! په تحقيق ځوى ستا (بنيامين) غلا وكړه، او مونږ نه وو ويلى بل شى مگر هغه مو وويل چې پرې خبر وو (چې د باچا جام ووت له باره د ده)، او نه وو مونږ پټ كار لپاره ساتونكي.

تفسير: يعني ما هم دلته پرېږدئ، او تاسې ګرد لاړ شئ او د خپل پلار په حضور كې عرض وكړئ، چې دغسې يوه واقعه راپېښه شوه، چې له سره يې توقع نه وه، او نه وو مونږ د پټ كار ساتونكي چې دغه جام پخپله بنيامين پټ كړى وو، او كه بل چا د ده په بار كې ايښى وو؟ .

شاه صاحب ليكي: «يعني مونږ خو له تاسې سره پر خپلې پوهې قول او عهد كړى وو، او له دې نه نه وو خبر چې (بنيامين) به غلا كې نيول كيږي، يا مونږ له خپل دين سره سم د غله د نيولو او ساتلو لار وروښووله، او له دې نه نه وو خبر چې ځمونږ ورور پخپله غل دى».

وَسْـَٔلِ الْقَرْيَةَ الَّتِىْ كُنَّا فِيْهَا وَالْعِيْرَ الَّتِىْٓ اَقْبَلْنَا فِيْهَا ۭ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۸۲﴾

او پوښتنه وكړه پخپله د هغې قريې (د مصر يا بل كوم ورته نژدې كلي څخه) چې وو مونږ په هغه كې او (پوښتنه وكړه) له هغه كاروانه چې مونږ مخ كړى وو (راغلي وو كنعان ته) په دغه (قافله) كې، او بېشكه خامخا مونږ صادقان يو.

تفسير: يعني تاسې يو معتبر سړى ولېږئ، او له هغو كليو څخه د دغې خبرې ښه تحقيق وكړئ، چې هلته دغه واقعه پېښه شوې ده، او اوس بېرته راغلي دي، نو تاسې ته به دغه خبره بيخي ثابته شي، چې مونږ پخپله په دغې وينا كې بالكل رښتيني يو.

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ اَنْفُسُكُمْ اَمْرًا ۭ فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ ۭ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّاْتِيَنِىْ بِهِمْ جَمِيْعًا ۭ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿۸۳﴾

وويل (داسې نه ده چې تاسې يې وايئ) بلكه ښايسته كړى دى تاسې ته نفسونو ستاسې يو كار (چې اراده مو ورته كړې وه)، نو (اوس كار ځما) صبر دى بهتر، نژدې دى دا چې الله راولي ماته دوى ټول، بېشكه دغه الله جل جلاله هم دى دى ښه عالم (په پټو او ښكاره وو) ښه حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوي.

تفسير: د ﴿فَصَبْرٌ جَمِيْلٌ﴾ ترجمه مفسرينو په څو ډوله سره كړې ده، چې د هغې نه دلته ځنې ذكر كيږي:

(۱): «پس ماته هغه صبر پكار دى، چې هيچاته به څه نه وايم».

(۲): «نو صبر ځما ښه صبر دى».

(۳): «پس كار ځما صبر ډېر ښه دى»، د اول ځلې بې اعتبارى لامله دا ځلې هم يعقوب عليه السلام د خپلو ځامنو پر خبرو اعتبار ونه كړ، ليكن د نبي الله كلام كله دروغ كېدى شي، ځكه چې په واقع سره دغه خبرې د ده ځامنو له ځانه جوړې كړې، او پخپله يوسف هم د ده ځوى وو، كذا في الموضح، ګواكې د «لكم» خطاب د ځامنو د جنس په لوري وشو.

وَتَوَلّٰى عَنْهُمْ وَقَالَ يٰٓاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ وَابْيَضَّتْ عَيْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ فَهُوَ كَظِيْمٌ ﴿۸۴﴾

او مخ وګرځاوه (یعقوب) له دغو (ځامنو خپلو) نه، او ویې ویل: أی افسوسه او غم ځما پر (بېلتون د) یوسف (راشه دغه دې وخت دی)، او تکې سپینې شوې دواړه سترګې د دغه (یعقوب) له غمه؛ نو دی ډک وو له قهره (او پټ ځغموونکی وو).

تفسیر: د دې نوي زخم له رسېدلو څخه د ده هغه پخوانی زخم بیا تازه شو، او بې اختیاره یې له خولې څخه دا چغه ووتله: ﴿يٰٓاَسَفٰى عَلٰى يُوْسُفَ﴾ «های افسوس پر یوسف»، یعنې ای افسوسه ځما پر یوسف راحاضر شه دغه دې وخت دی، او تکې سپینې شوې دواړه سترګې د یعقوب علیه السلام له غمه، یعنې بې رونقه یا بې نوره شوې «علی اختلاف القولین»، پس دغه یعقوب ډک وو په زړه کې د قهره د ځامنو نه، خو وئ ځغملو او پټ یې وساتلو.

په حدیث کې راغلی دي: «نحن معاشر الأنبياء أشد بلاء ثم الأمثل فالأمثل» یعنې د انبیاوو جماعت د پاک الله له جانبه په ډېرو سختو امتحانونو کې مبتلا کولی شي، بیا د امتحانونو ډېر اقسام دي، حق تعالی هر نبي سم له خپله حکمت او د ده له استعداد سره سم په هر امتحان سره یې چې اراده وفرمایې؛ اخته او مبتلا کوي یې.

قَالُوْا تَاللّٰهِ تَفْتَؤُا تَذْكُرُ يُوْسُفَ حَتّٰى تَكُوْنَ حَرَضًا اَوْ تَكُوْنَ مِنَ الْهٰلِكِيْنَ ﴿۸۵﴾ قَالَ اِنَّمَآ اَشْكُوْا بَثِّيْ وَحُزْنِيْٓ اِلَى اللّٰهِ وَاَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۶﴾

وویل (ځامنو د یعقوب پلار خپل ته) قسم دی پر الله چې همېشه یې ته چې یادوې یوسف (په زارئ او فریاد سره) تر هغه پورې چې شې ته قریب الموت (ناجوړ له ډېره غمه) یا شې ته له هلاک شوو نه. وویل (یعقوب): بېشکه همدا خبره ده چې شکایت کوم (او ژاړم د لوی او واړه) غم او خفګان خپل طرف د الله ته (یواځې)، او پوهېږم زه له جانبه د الله په هغه څه چې تاسې پرې نه پوهېږئ (لکه حیات د یوسف).

تفسیر: په «موضح القرآن» کې راغلي دي: «آیا تاسي ماته صبر رابنیئ؟» بې صبره خو هغه څوک دی چې د مخلوق په مخ کې د خالق د رالیږلي شوي درد شکایت وکړي، زه خو له هغه سره مناجات کوم، چې درد او ربړ (تکلیف) یې راکړی دی، او پر دی هم ښه پوهېږم چې یوسف علیه السلام ژوندی دی، ا وضرور به ورسره وینم، او د ده هغه لیدلی خوب هرومرو پوره کېدونکی دی، دغه ځما ابتلاء او ازموینه ده، وبه ګورم چې تر کومه حده پورې دغه ابتلاء ځنډېږي؟».

يٰبَنِيَّ اذْهَبُوْا فَتَحَسَّسُوْا مِنْ يُّوْسُفَ وَاَخِيْهِ وَلَا تَايْئَسُوْا مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ ۭ اِنَّهٗ لَا يَايْئَسُ مِنْ رَّوْحِ اللّٰهِ اِلَّا الْقَوْمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۷﴾

ای ځامنو ځما ! لاړ شئ نو لټونه وکړئ له (حاله د) یوسف او له حاله د ورور د ده، او مه ناامیده کېږئ له رحمته د الله، بېشکه شان دا دی چې نه ناامیده کېږي د الله له رحمت څخه مګر قوم کافران (منکران له الله او صفاتو د الله).

تفسیر: یعنې د الله تعالی له مهربانۍ او فیضه ناامیده کېدل د کافرانو دود دی، چې هغوی د ده له لوی رحمت او کامل قدرت څخه صحیح معرفت نه لري، د یوه مسلمان کار دا وي چې که د غرونو د پېتو په اندازه او د سمندر د چپو او موجونو په قدر مأیوس کوونکي حالات هم ورپېښ شي؛ خو بیا هم د پاک الله د رحمت امیدوار اوسي، او په امکاني

کوښښ کې بې همتي او بې زړه توب نه کوي، نو ځئ د يوسف عليه السلام سراغ او پته ولګوئ، او د ده ورور (بنيامين) د خلاصولو ذرائع ولټوئ، د الله تعالى له رحمته هيڅ لرې نه دی، چې مونږ بيا سره راټول کړې، د دريم ورور ذکر يې ښايي د دې لأمله ونه فرمايه، چې هغه پخپل اختيار يواځې د بنيامين له سببه ستون (واپس) شوی وو، که بنيامين خلاص شي، نو هغه به بلا سببه ولې هلته پاتې کيږي.

(بيا ورونړه د يوسف عليه السلام، دريم کرت د يعقوب عليه السلام له حضوره سره له څه بضاعته او مکتوب مصر ته ورغلل).

فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا يَا أَيُّهَا الْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُّزْجَاةٍ فَأَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا ۖ إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ ﴿٨٨﴾

نو کله چې ورننوتل ورونړه پر يوسف؛ نو وويل دوی چې: ای عزيزه ! رسېدلي ده مونږ ته او اهل (عيال) څمونږ ته سختي (او لوږه)، او راوړې ده مونږ پنګه (سرمايه) ناقصه، نو پوره راکړه مونږ ته پيمانه، او خيرات وکړه پر مونږ (په قبول د نقصان يا تزييد د احسان)، بېشکه چې الله جزاء (بدل) د دارينو ورکوي خيرات ورکوونکو ته.

تفسير: دوی سم د خپل پلار له ښوونې سره د مصر په لوري بيا روان شول، څرنګه چې د يوسف عليه السلام درک او پته نه وه معلومه، نو ړومبی د هغه چا (بنيامين) د نجات په فکر کې ولوېدل، چې ځای يې معلوم وو، او څرنګه چې د قحط له سببه غلې ته هم د دوی ډېر ضرورت وو، نو داسې يې سره وټاکل، ښايي چې عزيز ته په دې لوري هم توجه ورکړو، که د راکړې او ورکړې په معاملو کې مو عزيز پوست او نرم وموند؛ نو د (بنيامين) په نسبت به هم ورسره خبره کوو.

کله چې ړومبی خبرې دوی له عزيز سره داسې وکړې، ای عزيزه ! په دې ورځو کې د قحط له سببه پر مونږ او څمونږ پر کورنی ډېر زيات تکليف او زحمت تيريږي، څمونږ د کورونو مال او اسباب ګرد وپلورل (خرڅ) شول، اوس ډېره لږه بېکاره او حقيره پنګه (سرمايه) پاتې ده، چې هيڅوک يې نه اخلي، هغه مو د غلې پيرودلو (اخستلو) لپاره له ځان سره راوړې ده، ستا د ښو اخلاقو، له لويو مکارمو، او له پخوانيو مهربانيو څخه هيله لرو، چې څمونږ دغو ناقصو شيانو ته مه ګورئ، او د دغو لږو شيانو په بدل کې د پخوا په شان د غلې پوره مقدار مونږ ته امر وکړئ چې رايې کړې، دغه رعايت په حقيقت کې يو راز (قسم) خيرات دی، چې تاسې يې پر مونږ کوئ، برسېره په دې د خيرات په توګه هم څه شی راکړئ چې الله تعالى درسره ښه وکړي.

يوسف عليه السلام د دغه احوال له اورېدلو څخه بې اختياره په ژړا شو، او د ده د شفقت، رحم، عنايت او زړه سوی چينه د ده له زړه څخه وخوټېده، او د سترګو له لارې په بهېدلو شوه، او په دغه وخت کې د پاک الله په حکم سره ده خپل ځان دوی ته ورښکاره کړ، چې زه څوک يم؟ او تاسې چې کومه معامله له ما سره کړې وه، وروسته له هغې زه اوس کومې مرتبې ته رسېدلی يم؟ وروستی آيت د دغه اظهار لپاره تمهيد دی.

قَالَ هَلْ عَلِمْتُم مَّا فَعَلْتُم بِيُوسُفَ وَأَخِيهِ إِذْ أَنتُمْ جَاهِلُونَ ﴿٨٩﴾

وويل (يوسف عليه السلام ورونړو خپلو ته) آيا پوهېږئ تاسې چې څه فعل کړی وو تاسې له يوسف او له ورور د ده سره (چې خوار، زار او رټلی به مو ساته) کله چې تاسې ناپوهان وئ (له عاقبت د فعل خپل).

تفسير: يعني د دې دواړو په منځ کې مو بېلتون (جدايي) وغورځوله، او له دغو دواړو سره مو ضد او عناد وکړ، په هغه وخت کې چې تاسې ناپوهان وئ، يعنې د ځلميتوب په نشو کې بې سده (بې هوشه) وئ، او بې التفاته له قباحته د دې فعل يا له عقوقه د پلار خپل او له حقوقه د ورورولۍ، او دا يې په طريقه د نصيحت ورته ويل، نه لپاره د راښکلو او شرمولو.

الله أکبر، دغه د صبر او مروت او اخلاقو ډېره لوړه مرتبه ده، چې د دغه ټول عمر د ربړو (او تکليفونو) او شکايتونو لپاره يو توری يې هم پخپله ژبه رانه ووړ، او دومره سوال يې هم د دې لامله وکړ، څو دوی پخپلو زړونو کې شلهاوو کلونه پخواني احوال يو ځلې مستحضر کړي، چې د ماضي او حال موازنې څخه د الله تعالی د هغو احساناتو حقيقت ښه روښانه شي، چې پر يوسف عليه السلام له هغو مصائبو او حوادثو څخه وروسته شوي دي.

قَالُوٓا۟ ءَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ ۖ قَالَ أَنَا۠ يُوسُفُ وَهَٰذَآ أَخِى ۖ قَدْ مَنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَآ ۖ إِنَّهُۥ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٩٠﴾

وويل (وروڼو د يوسف): آيا بېشکه ته چې يې خامخا دا ته يې يوسف؟، و يې ويل: (هو !) همدا زه يم يوسف او دغه (بنيامين) مې سکه ورور دی، په تحقيق احسان فرمايلی دی الله پر مونږ باندې (په سلامت او کرامت)، بېشکه شان دا دی هر څوک چې وويرېږي له الله او صبر وکړي (په طاعت او عبادت او له معصيت)؛ نو بېشکه الله نه ضايع کوي اجر د نيکوکارانو.

تفسير: ممکن دي چې له دغه سوال څخه دوی ډېر سخت ويريدلي وي، چې وروسته له دومره زياتې مودې څخه دغه د کور پټه چا ورڅرګنده (ښکاره) کړې ده، بيا د مصر عزيز د يوسف عليه السلام له قصې سره څه کار لري؟ څرنګه چې دوی د يوسف عليه السلام فوق العاده مراحم او له (بنيامين) سره يې خصوصي سلوک لا له پخوا څخه ليدلي وو؛ نو دغه سوال به دفعتاً د دوی اذهان دغه لوري ته منتقل کړي وي، چې نه يوسف عليه السلام به چې مونږ پر مصري کاروان پلورلی (خرڅ کړی) وو همدغه وي، کله چې دغه لوري ته متوجه شوي وي، نو په غور سره به يې کتلي وي.

او ممکن دي چې دا ځلې يوسف عليه السلام هم خپل ځان په واضح ډول سره دوی ته ورانده کړی وي، يا يې تصريحا ويلي وي چې زه يوسف عليه السلام يم.

الغرض چې دوی سخت متعجب او حيران شول، او په حيرت سره يې پوښتنه وکړه: ﴿ءَإِنَّكَ لَأَنتَ يُوسُفُ﴾ «رښتيا اوښيه آيا همدا ته يوسف يې؟»، نو وويل يوسف عليه السلام چې: هو ! په رښتيا سره همدا زه يوسف يم، او دغه مې سکه ورور دی (بنيامين) يعنې له هغه څخه چې تاسې زه بېل کړی وم دا دی اوس له ما سره ناست دی.

قَالُوا۟ تَٱللَّهِ لَقَدْ ءَاثَرَكَ ٱللَّهُ عَلَيْنَا وَإِن كُنَّا لَخَٰطِـِٔينَ ﴿٩١﴾

وويل (وروڼو د يوسف هغه ته) قسم دی پر الله چې خامخا په تحقيق غوره کړی يې ته الله پر مونږ (په صورت او سيرت) او بېشکه چې وو مونږ خامخا له خطا کوونکو (په هغه عمل چې کړی وو مونږ له تا سره).

تفسير: يعنې الله جل جلاله تاته له هر حيثيته پر مونږ درجه او فضيلت درکړی دی، ته د همدې مقام وړ او لايق وې، مونږ له خپلې غلطۍ او تيرې ستا قدر ونه پېژنده، بالآخر ستا خوب رښتيا او ځمونږ حسد او رخه (کينه) ښکاره ښکاره شوه.

قَالَ لَا تَثۡرِيبَ عَلَيۡكُمُ ٱلۡيَوۡمَۖ يَغۡفِرُ ٱللَّهُ لَكُمۡۖ وَهُوَ أَرۡحَمُ ٱلرَّٰحِمِينَ ﴿٩٢﴾

وويل (يوسف ورونړو خپلو ته) نشته هيڅ ملامتي (زور او نه الزام له جانبه ځما) پر تاسو نن ورځ، مغفرت دې وکړي الله تاسې ته (چې مقر شوئ په ګناه خپلې) او همدی دی ښه غوره مهربان د ټولو مهرباني کوونکو.

تفسير: يوسف عليه السلام له سره داسې اراده نه درلوده، چې دومره يوه خبره هم له خپلو ورونړو څخه واوري، نو ويې فرمايل چې: دغه تذکرې مه کوئ! زه نن پر تاسو هيڅ ملامتي نه اړوم، او ستاسې ګرد اغلاط مې دربخښلي دي، هغه لفظ چې ما وواية؛ يواځې د الله تعالی د احسان او د صبر او تقوی د نتيجې د ظاهرولو په نيت سره مې وواية، وروسته له نن ورځې ستاسې د تقصير ذکر به هم نه کيږي، زه دعا کوم چې پاک الله ستاسې دغه خطاوې چې کړې مو دي؛ در وبښې، ځکه چې هغه ډېر مهربان دی له ټولو مهرباني کوونکو، او دغه ځما مهرباني هم يوه پلوشه ده د ده د مهربانيو څخه.

کله چې يوسف عليه السلام د خپلو ورونړو د تسلي او ډاډګيرنې څخه وزګار شو؛ نو د خپل مهجور او سپينږيري پلار له حال څخه يې هم تپوس او پوښتنه وکړه، چې څرنګه دی؟ دوی وويل چې: له ډېرې ژړا يې سترګې ړندې شوي دي، نو يوسف عليه السلام دوی ته وويل:

ٱذۡهَبُواْ بِقَمِيصِي هَٰذَا فَأَلۡقُوهُ عَلَىٰ وَجۡهِ أَبِي يَأۡتِ بَصِيرٗا وَأۡتُونِي بِأَهۡلِكُمۡ أَجۡمَعِينَ ﴿٩٣﴾

يوسئ قميص ځما دغه نو واچوئ هغه پر مخ د پلار ځما؛ نو وبه ګرځي بيا ليدونکی او راشئ تاسې ماته سره له اهله خپل ټول.

تفسير: يعنې زه په موجوده حالت کې د شام په لوري نشم درتلی، تاسې لاړ شئ، او والدين سره له ټولو ګردو نورو متعلقينو مې دلته راولئ، ځکه چې ډېر مدّت پر مونږ او تاسې باندې غمونه او مشقتونه تېر شوي دي، نو اوس له خيره سره دلته راشئ، چې له ما سره لږ څه معاش وګورئ، او مونږ ګرد سره يو ځای شو، او يو د بل له وصاله او ګټون څخه متمتّع او ګټور شو، څرنګه چې د خپل لوی پلار په نسبت د وحيې په وسيله، يا د ورونړو له بيانه دا ورمعلومه شوې وه چې بصارت يې نه دی ورپاتې، يا يې په ليدلو کې څه فرق پيدا شوی دی، نو ځکه يې خپل قميص ورکړ، او ويې فرمايل چې دا قميص ځما له ځان سره يوسئ، او ځما د پلار په سترګو يې واچوئ، نو بيا به يې بصارت پخپل حال راشي.

شاه صاحب ليکي: «د هر مرض لپاره الله تعالی يو دوا مقرره کړې ده، څرنګه چې د ده بصارت د يوه سړي له بيلتون څخه تللی وو؛ نو د هغه د بدن د يوه څيز له مونډلو څخه هغه ببرته روغ شو، دغه د يوسف عليه السلام معجزه وه»، کله چې يوسف عليه السلام خپل قميص ورکړ او اسباب او خوراک د لارې يې لپاره د پلار او د نورو متعلقانو تيار کړ، او ورونړو ته يې وسپارل؛ نو دوی د کنعان په جانب متوجه شول.

وَلَمَّا فَصَلَتِ ٱلۡعِيرُ قَالَ أَبُوهُمۡ إِنِّي لَأَجِدُ رِيحَ يُوسُفَۖ لَوۡلَآ أَن تُفَنِّدُونِ ﴿٩٤﴾

او کله چې بيا جلا (جدا) شو کاروان (له مصره) وويل پلار د دوی (يعقوب خپلو مصاحبينو ته په کنعان کې): بېشکه زه چې يم خامخا مومم بوی د يوسف که چېرې نسبت د کم عقلی (د زوړوالي) نه کوئ ماته.

تفسير: د الله تعالی قدرت ته څير شئ (غور وکړئ) چې يوسف عليه السلام په مصر کې موجود دی، او يعقوب عليه السلام په کنعان کې، خو په دومره کلونو کې هيچېرې يعقوب عليه السلام ونه ويل چې: د يوسف عليه السلام ښه وږمه

رارسيږي، ځکه چې د پاک الله امتحان لا پای ته نه وو رسېدلی، اوس چې د پاک الله اراده د ده بللو ته غوټه شوې ده، او له هغه لوري کاروان له مصره د کنعان په لوري روان دی، او د یوسف علیه السلام قمیص ورته سوغات او ارمغان دی، دلته د یوسفي قمیص ښه وږمه یعقوب علیه السلام روح معطره کوي.

دا یوه واقعه لا څه ـ بلکه دغه ګرده قصه د قدرت د عجائبو یوه لویه مرقع ده، د یعقوب علیه السلام په شان یو مشهور معروف نبي علیه السلام په شام کې هستوګنه ولري، او د یوسف علیه السلام په شان یو جلیل القدر ذات په مصر کې حکومت وچلوي، او یوسف علیه السلام ورونه څو ځلې مصر ته راشي، او پخپله د یوسف علیه السلام کره مېلمانه شي، او سره له هغه د الله قدّوس جل جلاله غامضه حکمت او قاهره مشیئت دغه پلار او ځوی سره تر شلهاوو کلونو پورې بېل وساتي، او د وینې په اوښکو یې وژړوي، او خپل امتحان پرې تکمیل کړي، جلت قدرته ! وعزّ سلطانه.

په هر تقدیر نو وویل پلار د دوی یعقوب علیه السلام هغو حاضرینو ته چې په کنعان کې ورسره ناست وو چې: بېشکه خامخا زه مومم بوی د یوسف علیه السلام که نسبت د کم عقلۍ نه کوئ تاسې ماته، او داسې راته نه وایئ چې ته اوس زوړ شوی یې؛ نو فضول او چټي (بېکاره) خبرې کوې، یعنې د دغې خبرې په ویلو سره شرمېږم، ځکه چې د هغه پر کیفیت ستاسې فکر نه رسېږي، او تاسې ګرد به سره ووایئ چې دغه سپین ږیري ته وګورئ چې بیخي بې سده (بېهوشه) او پاګل شوی دی، او اپلتې وایي، او چټي (بېکاره) خبرې کوي، او د بوډاتوب خوبونهویني.

قَالُوا تَاللّٰهِ اِنَّكَ لَفِيْ ضَلٰلِكَ الْقَدِيْمِ ﴿۹۵﴾

وویل (حاضرینو یعقوب ته) قسم دی پر الله بېشکه ته چې یې خامخا په همغه خطا او سرګرداني پخوانۍ خپلې کې (همغسې لا پروت) یې.

فَلَمَّآ اَنْ جَآءَ الْبَشِيْرُ اَلْقٰىهُ عَلٰى وَجْهِهٖ فَارْتَدَّ بَصِيْرًا ۚ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ ۚ اِنِّيْۤ اَعْلَمُ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۹۶﴾

نو کله چې راغی زېری کوونکی نو واچوه ده هغه (قمیص) پر مخ د دغه (یعقوب) باندې؛ نو وګرځېده لیدونکی، وویل (یعقوب): آیا نه وو ویلي ما تاسې ته چې بېشکه زه پوهېږم له (ښوونې د) الله په هغه څه چې نه پوهېږئ تاسې (چې حیات او ملاقات د یوسف او نورو دی).

تفسیر: یعنې بینایي او لیدل یې بېرته وګرځېدل، او بیا لکه د پخوا هر شی به یې لیدلو، او بینا شو، نو وویل یعقوب علیه السلام هغو خلقو ته چې ملامتي یې پرې ویلې وه: آیا نه وو ویلي ما تاسې ته چې بېشکه زه پوهېږم له ښوونې د الله په هغه څه چې نه پوهېږئ تاسې چې حیات او ملاقات دی له یوسف علیه السلام او نورو سره، یعنې ما نه وو ویلي چې ښه بوی راځي؟ بالآخر ځما هغه خبره رښتیا شوه، یا یې خپلو ځامنو ته ویلي وو، چې د یوسف علیه السلام له لټولو څخه لاس مه اخلئ ! د پاک الله له رحمته دغه خبره لرې نه ده چې بیا مونږ ګرد سره راټول کړي، ګورئ ! چې همغه صورت را دمخه شو.

قَالُوْا يٰۤاَبَانَا اسْتَغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَآ اِنَّا كُنَّا خٰطِئِيْنَ ﴿۹۷﴾

وویل (ورونړو د یوسف): ای پلاره ځمونږ ! مغفرت وغواړه له الله ځمونږ لپاره د ګناهونو ځمونږ، بېشکه چې مونږ وو خطا کوونکي (ګناهګاران ستا او د یوسف په حق کې).

قَالَ سَوْفَ أَسْتَغْفِرُ لَكُمْ رَبِّيْ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۹۸﴾

وويل (يعقوب ځامنو خپلو ته): ژر به مغفرت وغواړم تاسې ته له ربه خپله، بېشکه دغه (الله) همدی دی ښه بخښونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: يعنې صبر وکړئ ! چې د قبول ساعت او ګړی راشي، نو هلته به زه د خپل مهربان الله په دربار کې لاسونه پورته کوم، وايي د جمعې د شپې يا دتهجد د وقت په انتظار کې وو، يا يې غوښت چې وروسته د يوسف عليه السلام د بخښلو يا وروسته له ورتللو د مصره چې هلته به ټول په ګډه سره له الله تعالى څخه غوښتنه کوو.

فَلَمَّا دَخَلُوْا عَلٰى يُوْسُفَ اٰوٰۤى اِلَيْهِ اَبَوَيْهِ وَقَالَ ادْخُلُوْا مِصْرَ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ اٰمِنِيْنَ ﴿۹۹﴾

نو کله چې رانوتل دوی پر يوسف عليه السلام (په ماڼۍ او مجلس د يوسف عليه السلام)؛ نو رانژدې يې کړل ځان ته مور او پلار خپل، او وويل يوسف عليه السلام چې ننوځئ (ښار د) مصر ته که اراده وفرمايي الله حال دا چې په امن کې به شئ (له هرې سختۍ).

تفسير: له ښاره د باندې د خپل مور او پلار د استقبال او هرکلي او ښه راغلې لپاره ووت، خپل مور او پلار ته يې له خپل ځان سره نژدې ځای ورکړ، ځينې وايي چې د يوسف عليه السلام مور لا له پخوا څخه مړه شوې، او دلته يې د توړې (خاله) ذکر دی.

خو په دې خبره هيڅ صحيح دليل نشته، او ظاهر د قرآنکريم د هغې په ژوندون دلالت کوي، لکه څنګه چې امام ابن جرير (رحمه الله تعالى) وايي، او ابن کثير (رحمه الله تعالى) وايي: «وهذا الذي نصره ابن جرير هو المنصور الذي يدل عليه السياق»، يعنې دا خبره چې ابن جرير (رحمه الله) ورته ترجيح ورکړې ده؛ همدغه قوي خبره ده، لکه څنګه چې د قرآن کريم د سياق څخه څرګنديږي.

يوسف عليه السلام ګردو ته وويل چې: ښار ته لاړ شئ، او له قحط او سختۍ او مشقت او نورو شيانو څخه انديښنه مه کوئ، ان شاء الله تعالى بالکل په زړه جمعۍ او راحت او اطمينان اوسېږئ !.

وَرَفَعَ اَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوْا لَهٗ سُجَّدًا ۚ وَقَالَ يٰۤاَبَتِ هٰذَا تَاْوِيْلُ رُءْيَايَ مِنْ قَبْلُ ۫ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّيْ حَقًّا ؕ وَقَدْ اَحْسَنَ بِيْۤ اِذْ اَخْرَجَنِيْ مِنَ السِّجْنِ وَجَآءَ بِكُمْ مِّنَ الْبَدْوِ مِنْ بَعْدِ اَنْ نَّزَغَ الشَّيْطٰنُ بَيْنِيْ وَبَيْنَ اِخْوَتِيْ ؕ اِنَّ رَبِّيْ لَطِيْفٌ لِّمَا يَشَآءُ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۰۰﴾

او پورته يې کړل مور پلار خپل (کښېنول له ځانه سره) پر تخت خپل او پرېوتل (دغه «۱۱» ورونه او والدين) دغه (يوسف طرف ته) سجده کوونکي، او وويل (يوسف): ای پلاره ځما ! دا (سجدې) بيان (تعبير) دی د هغه خوب ځما (چې ليدلی مې وو) پخوا له دې نه په هلکتوب کې، په تحقيق وګرځاوه دا خوب رب ځما حق (او رښتينی)، او په تحقيق احسان انعام يې کړی دی له ما سره کله چې راويې ايستم زه له بنديخانې او رايې وستئ تاسې له ميرې (صحرا نه مصر ته) وروسته له هغه چې فساد جګړه غورځولې وه شيطان په منځ ځما او په منځ د ورونو ځما کې، بېشکه رب ځما چې دی باريک تدبير والا دی لپاره د هغه چا چې اراده وفرمايي، بېشکه الله همدی دی ښه عالم (په ټولو احوالو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

**تفسير:** يوسف عليه السلام له خپل طرفه د خپلو والدينو تعظيم وکړ، او دوی يې پر خپل تخت کښېنول، ليکن څرنګه چې د پاک الله اراده پر دغه تللې وه، چې د يوسف عليه السلام تعظيم به پر دوی کوي؛ نو له هغه ځنې ممانعت د يوسف عليه السلام له لاسه کله پوره کېدی شو، نو سم د هغه وخت له دود او دستور سره مور او پلار او ټول ورونه د يوسف عليه السلام په مخ کې په سجده ولوېدل.

دغه تعظيمي سجده وه، چې د حافظ عماد الدين ابن کثير (رحمه الله تعالى) له وينا سره د آدم عليه السلام له زمانې راهيسې د مسيح عليه السلام تر زمانې پورې جائزه وه، او يوازې محمدي شريعت هغه ناجائزه او حرامه وبلله، لکه چې ډېر احاديث پرې شهادت ورکوي.

ځينو مفسرينو په دغه ځای کې له سجدې ځنې د هغه متبادره معنی نه ده مراد کړې، او تش سر ښکته کول او يوازې لږ څه ټيټېدل ترې اخلي.

ځينې وايي چې دغه سجده د يوسف عليه السلام لپاره نه وه، بلکه د يوسف عليه السلام له عظمت او عزت ليدلو لامله د پاک الله په دربار کې د شکر اداء کولو سجده وه، نو په دغه تقدير دغه لام به سببي وي، چې په ﴿وَخَرُّوا۟ لَهُۥ سُجَّدًا﴾ کې دی، يعنې د يوسف عليه السلام د عروج او اقتدار په سبب د پاک الله په دربار کې دوی د شُکرانې سجدې وکړې.

رَبِّ قَدْ ءَاتَيْتَنِى مِنَ ٱلْمُلْكِ وَعَلَّمْتَنِى مِن تَأْوِيلِ ٱلْأَحَادِيثِ ۚ فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ أَنتَ وَلِىِّۦ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۖ تَوَفَّنِى مُسْلِمًا وَأَلْحِقْنِى بِٱلصَّٰلِحِينَ ﴿۱۰۱﴾

ای ربه ځما ! په تحقيق راکړې دې ده ماته څه برخه له باچاهی (تصرّف د مصر) او ښوولي دي دې ماته څه علم له تفسير او تأويل د خبرو (لکه تعبير د خوبونو بيان د کتابونو)، ای پيدا کوونکيه د اسمانونو او د ځمکې ! هم ته يې ولي (دوست واکدار کار جوړوونکی) ځما په دنيا او په آخرت کې، وفات کړه ما په دې حال کې چې مسلمان يم او يو ځای مې کړه (په مرتبه او کرامت کې) له صالحانو سره.

**تفسير:** د دې سورت په اوله رکوع د تأويل الأحاديث تفسير ليکلی شوی دی، يا خو يې د لقاء الله په شوق کې في الحال د موت تمنّا وکړله، يا خو دا مطلب دی کله چې زه مرم ښايي چې موت په داسې حال کې راباندې راشي، چې زه په اسلام يعنې کامل تسليم او رضاء قائم اوسم.

**تنبيه:** په حديث کې راغلي دي چې: «هيڅ يو انسان دې د مصيبت او تکليف له وېرې د موت تمنّا نه کوي !»، له دې نه داسې مفهومېږي، چې د حب لقاء الله يا بل کوم صالح غرض لپاره د موت تمنّا کېدی شي، لکه چې د فرعون ساحرينو داسې دعا کړې وه: ﴿رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَتَوَفَّنَا مُسْلِمِينَ﴾ يا مريمې ويلي وو: ﴿يَٰلَيْتَنِى مِتُّ قَبْلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسْيًا مَّنسِيًّا﴾ (۱۶ جزء د مريم سورت (۲) رکوع (۲۳) آيت)، او د معاذ (رضي الله تعالى عنه) په حديث کې دي: «إذا أردت بقوم فتنة فاقبضني إليک غير مفتون».

د احمد په مسند کې حديث دی: «يکره الموت والموت خير للمؤمن من الفتن»، علي رضي الله عنه د فتن د هجومو په وخت کې دعا کړې وه: «اللهم خذني إليک فقد سئمتهم وسئموني»، کله چې امام بخاري جګړه د خراسان له امير سره ونښتله، نو دی داسې دعا کولو ته مجبور شو: «اللهم توفّني إليک»، په حديث شريف کې دي، چې د دجّال دخروج په وقت کې يو سړی به پر کوم قبر تيرېږي، او د دغو فتنو او زلازلو له ليدلو څخه به ووايي: «يا ليتني مکانک»، کاشکې ای مړيه ! زه ستا په ځای وای».

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ۚ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ ﴿۱۰۲﴾

دغه (قصه د يوسف) له خبرو د غيبو ده چې وحيه كوو مونږ هغه تاته (اى محمده !) او نه وې ته (اى محمده !) له دغو (ځامنو د يعقوب) سره كله چې دوى راټول كړ فكر خپل (په غورځولو د يوسف په كوهي كې) حال دا چې دوى مكر فرېب كولو (له يوسف سره نو چې تا غوندې امي په دې سره اخبار كوي؛ نو دغه اعجاز دى).

وَمَآ اَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۰۳﴾

او نه دي زياتره خلق او اګر كه حرص وكړې ته (اى محمده ! په ايمان راوړلو د دوى) ايمان راوړونكي (عناداً).

تفسير: يعنې سره له دې چې ستاسې پر صداقت داسې ښكاره او واضح دلائل هم موجود دي، بيا هم زيات خلق هغه كسان دي چې په هيڅ ډول سره ايمان نه راوړي.

وَمَا تَسْـَٔلُهُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۴﴾

او نه غواړې (اى محمده !) له دوى څخه په دغه (ابلاغ د قرآن) هيڅ اجر (بدل، عوض)، نه دى دا قرآن مګر پند دى (له جانبه د الله) لپاره د ټولو خلقو (جن دى كه انس).

وَكَاَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿۱۰۵﴾

او ډېر دي له دلائلو (چې دلالت كوي په كامله قدرت او وجود د رب العزت او په استحقاق دهغه دعبادت) په اسمانونو او په ځمكه كې (چې دغه معاندين) تيريږي پرې (او په سترګو يې ويني) حال دا چې دوى له هغو نښو ځنې تل څنګ كوونكي دي (چې نه په كې فكر كوي او نه ترې عبرت اخلي).

تفسير: يعنې همغسې چې د تنزيليه وو آيتونو په اورېدلو سره دوى ايمان نه راوړي؛ همداسې د تكوينيه وو آيتونو په ليدلو سره هم د الله تعالى د توحيد سبق نه زده كوي، اصلي خبره خو همدا ده، چې د دوى اورېدل او ليدل خوشې چټي (بېكاره) او محض سطحي دي، كه په آيات الله كې دوى لږ څه غور او فكر چلولى وى؛ نو څه نه څه ګټه او فائده به ترې وررسېده، كله چې دوى فكر او تميز نه لري؛ نو ايمان به له كومه راوړي.

وَمَا يُؤْمِنُ اَكْثَرُهُمْ بِاللّٰهِ اِلَّا وَهُمْ مُّشْرِكُوْنَ ﴿۱۰۶﴾

او ايمان نه راوړي اكثر له دغو مشركانو پر (وجود او خالقيت او استحقاق دعبادت يواځې د) الله مګر په دې حال كې چې دوى شريك نيوونكي (وي له الله سره د بل څيز په عبادت او بندګى كې).

تفسير: په ژبې سره ګرد وايي چې: خالق او مالك همغه الله تعالى دى، مګر سره له هغه دوى ځينې طواغيت د الله حصه داران ګرځوي، لكه چې د عربو مشركانو به په تلبيه كې دا الفاظ ويل: «لبيك اللهم لبيك لا شريك لك، الا شريكا هو لك، تملكه وما ملك»، ځينې د هغه لپاره هلك او جونې تجويز كوي، ځينې هغه روح او مادې ته اړ (مجبور) او

محتاج بولي، ځینو احبارو او رهبانانو ته يې د الله تعالی اختیارات ورکړي دي، ډېرو کسانو د تعزیه داری، مجاوری، قبر پرستی، پیر پرستی، د خسو او خاشاکو سره د توحید صافه او پاکه چینه مکدّره او لوغړنه او خرابه کړې ده، څومره داسې موحدین به پیدا کیږي، چې له ریا او هوا او هوس څخه پاك وي؟ الغرض دایمان داری دعوی ډېره ګرانه ده، او داسې پاک، سوچه او چاندي مسلمانان ډېر لږ پیدا کیږي، چې د عقیدې او عمل په درجه کې د جلي او یا د خفي شرک ارتکاب نه کوي. (أعاذنا الله من سائر أنواع الشرك).

اَفَاَمِنُوْٓا اَنْ تَاْتِیَهُمْ غَاشِیَةٌ مِّنْ عَذَابِ اللّٰهِ اَوْ تَاْتِیَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا یَشْعُرُوْنَ ﴿۱۰۷﴾

آیا نو په امن کې دي دا (مشرکان) له دې نه چې راشي دوی ته (عقوبت) چاپېر بدونکی پټوونکی له عذابه د الله نه یا راشي دوی ته قیامت ناڅاپه حال دا چې دوی پرې خبر نه وي (او څه تیاری نه وي کړی ورته).

تفسیر: یعنې دغه مشرکان داسې بې فکره، او بې خوفه ولې کیږي، آیا دوی د الله تعالی له عذابه، یا د قیامت له هولناکو او ویروونکو حوادثو څخه د محفوظ پاتې کېدلو څه انتظام کړی دی؟.

قُلْ هٰذِهٖ سَبِیْلِیْٓ اَدْعُوْٓا اِلَی اللّٰهِ ؔ عَلٰی بَصِیْرَةٍ اَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِیْ ؕ وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ﴿۱۰۸﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې دغه (ایمان او توحید) لاره ځما ده چې (ټینګ پرې ولاړ یم او) بولم زه ټول خلق طرف د (توحید) د الله ته په بیان (او ښکاره دلیل) سره (هم) زه او (هم هر) څوك چې متابعت پیروي کوي ځما، او پاک دی الله (له شرکه او ولده او نورو عیبونو) او نه یم زه له شریکك نیوونکیو (په الله پورې).

تفسیر: یعنې ځما لاره هم دغه د خالص توحید سمه صافه لاره ده، زه ګردې دنیا ته دعوت ورکوم چې ګرد چټي (بېکاره) خیالات او اوهام پرېږدي، او د یوه واحد احد الله تعالی لوري ته راشي ! د ده توحید د ده د صفاتو او کمالاتو او د احکامو او د نورو صحیح معرفت حاصل، او صحیحه لاره پیدا کړي، زه او ځما ملګري پر همدغې سمې صافې لارې باندې رهي (روان) یو، او د حجّت او برهان، او بصیرت او وجدان په رڼا درومو، پاك الله ماته داسې یو نور او رڼا راعطا کړې ده، چې په هغې سره ځما او ځما د ګردو ملګرو دماغ منوّر او روښان شوي دي، دلته له سره د ړوندو تقلید او پیروي نشته، د خاص توحید تلونکي پخپل هر قدم کې پخپل باطن کې د معرفت او بصیرت خاصه رڼا او د عبودیت محضه خاص لذت محسوسوي، او په ډېر اخلاص او صمیمیت (عزم) سره داسې مخلصانه نارې وهي: ﴿وَسُبْحٰنَ اللّٰهِ وَمَآ اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ﴾ کله چې کفارو وویل چې الله تعالی څخه خو ډېر ملائکې دي؛ نو هغه یې ولې نه رالېږلې، چې ته او نور سړي یې رالیږلي یې؟ نو دغه آیت نازل شو:

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِیْٓ اِلَیْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰی ؕ اَفَلَمْ یَسِیْرُوْا فِی الْاَرْضِ فَیَنْظُرُوْا كَیْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ وَلَدَارُ الْاٰخِرَةِ خَیْرٌ لِّلَّذِیْنَ اتَّقَوْا ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۹﴾

او نه وو لیږلي مونږ پخوا له تا (په رسالت سره) مګر سړي (بنیادم، نه ملائک، نه جن، نه ښځې) چې وحیې به کوله مونږ دوی ته له اهل د قریو (او ښارونو، نه له صحرایانو او بیابانیو)، آیا نو نه ګرځي (دا کافران) په ځمکه کې چې پس ووینې وینې دوی (په نظر د عبرت سره) چې څرنګه وو عاقبت (آخره خاتمه) د هغو (دروغجنانو) چې پخوا تېر شوي دي له دوی نه، او خامخا کور

د آخرت (جنت) ډېر غوره دی لپاره د هغو کسانو چې ځان ساتي (له شرکه او له نافرمانی او ویریږي له الله)، آیا نو تاسې عقل نه چلوئ (په بهترۍ یې).

تفسیر: یعنې پخوا له دې نه هم مونږ له اسماني پرښتو څخه کوم نبي نه دی منتخب کړی، او نه لېږلی دی، پخواني انبیاء علیهم السلام هم د همدغه انساني کلیو او د ښارونو له هستېدونکو سړیو څخه وو، نو بیا ووینئ ! چې د هغوی د دروغجن کوونکیو کسانو حشر په دنیا کې څرنګه شو؟.

تنبیه: له دې آیت څخه دغه خبره راوځي چې هیڅ یوه ښځه د نبوّت په درجه نه ده رسېدلې، بي بي مریمې رضي الله عنها ته پاک قرآن د «صدیقې» مرتبه وربښلې ده، او هم له دې آیت څخه ظاهرېږي چې له اهل البوادي (صحرائیانو او بدوانو) څخه هیڅ یو نبي نه دی مبعوث شوی، پس ښایي چې مغروره نشي معاندان د زمانې ستا ای محمده ! ځکه چې هغو تېرو اقوامو ته به مونږ په هغه طغیان او تکذیب خپل کې مهلت ورکاوه، او رسولانو به تبلیغ کاوه، او نصرت به یې مؤخر کېده.

حَتّٰۤى اِذَا اسۡتَيۡـَٔسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوۡۤا اَنَّهُمۡ قَدۡ كُذِبُوۡا جَآءَهُمۡ نَصۡرُنَا ۙ فَنُجِّىَ مَنۡ نَّشَآءُ ؕ وَلَا يُرَدُّ بَاۡسُنَا عَنِ الۡقَوۡمِ الۡمُجۡرِمِيۡنَ ﴿۱۱۰﴾

تر هغه پورې چې نااميده به شول رسولان (له اسلام د کفارو یا د ژر راتللو د عذاب)، او ګمان به وکړ دوی چې بېشکه دوی په تحقیق دروغ ویلی شوي دي دوی ته (له جانبه د نفسونو د دوی، یا له جانبه د قوم د دوی په وعده د ایمان، په همدې وخت کې) ناڅاپه به راغی دوی ته نصرت مدد څمونږ، نو خلاصی به ورکړه شوه لـه (عذابـه) هغه چا ته چې اراده به وفرمایله مونږ (یعنې رسولان او مؤمنان)، او نشي دفع کېدلی عذاب څمونږ له قوم ګناهګارانو (کافرانو) څخه.

تفسیر: یعنې د عذاب له تاخیره مه خطاء وځئ ! پخوانیو اقوامو ته هم اوږده مهلتونه ورکړی شوي وو، او د عذاب په راتللو کې به دومره زیات ځنډ پېښېده، چې منکرین بیخي یاغي او بېفکره کېدل، او ډېر زیات شرارت او له حده تېر شرارتونه او بغاوتونه به یې کول، او د دغو حالاتو له لیدلو څخه به انبیاوو علیهم السلام د دوی د ایمان راوړلو څخه بیخي مایوس کېدل، او له بل لوري به الله تعالی هغوی ته دومره زیات فرصت او مهلت ورکاوه، چې تر ډېر زیات اوږده مدّت پورې به هم د عذاب یوه نښه او آثار دوی ته نه څرګندېدل (ښکاره کېدل).

الغرض د دواړو خواوو حالات او آثار به د انبیاوو علیهم السلام لپاره نااميدي ښونکي او بې هیلې کېدونکي وو، د دغې منظرې له لیدلو څخه کافرانو به په یقیني ډول سره داسې خیال کاوه، چې له انبیاوو سره هغه وعدې چې د دوی د نصرت او مرستې او څمونږ او د اهلاک لپاره شوي دي؛ هغه ګردې چټې او دروغ دي، د عذابونو او نورو ګرد چل ول او مکر او فریب تش څمونږ د وېرولو لپاره وو.

هیڅ لرې به نه وي چې په داسې مایوس کوونکو او اضطراب غورځوونکو حالاتو کې د انبیاوو علیهم السلام په زړونو کې به بې اختیاره داسې وهم ورپیدا شوی وي، چې هغه وعدې چې څمونږ د نصرت او د منکرینو د هلاکت په نسبت کړی شوې وې، آیا هغه به نه پوره کیږي؟ لکه چې د البقره سورت په (۲۶) رکوع یې فرمایلي دي: ﴿وَزُلۡزِلُوۡا حَتّٰى يَقُوۡلَ الرَّسُوۡلُ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا مَعَهٗ مَتٰى نَصۡرُ اللّٰهِ ؕ﴾.

کله چې د مجرمینو بې خوفي او د انبیاوو علیهم السلام تشویش تر دې اندازې ورسېد؛ نو په دغه وخت کې یو ناڅاپه اسماني مدد راغی، بیا د هر چا په نسبت چې د الله تعالی اراده وشوه، یعنې فرمان وړونکي مؤمنین یې محفوظ او مأمون وساتل، او د مجرمینو بېخ یې وویست.

تنبيه: د الله تعالى له غير محدود رحمت او مهربانۍ څخه مايوسي کفر دی، ليکن د ظاهري حالاتو او اسبابو په اعتبار مايوسي کفر نه ده، يعنې داسې ويلی شي، چې مثلاً د هغه څيز په نسبت تر هغه ځای پورې چې د ظاهري اسبابو تعلق دی مايوسي شته، ليکن د حق تعالى له کامل رحمت څخه مايوسي نه ده پکار، په ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا ٱسۡتَيۡـَٔسَ ٱلرُّسُلُ﴾ آيت کې همدغه مايوسي مراد ده، چې د ظاهري حالاتو او آثارو په اعتبار ده، چې د کفارو له ايمان او اصلاح څخه مايوس شوي دي، که نه انبياء عليهم السلام د الله تعالى له رحمت څخه کله مايوس کېدی شي.

تنبيه: د کفر وسوسه چې هاجس او خاطر ورته وايه شي؛ په حق د عامو مسلمانانو کې کفر نه دی، او نه په کومه درجه د ايمان يا د عصمت منافي ده، په حديث کې راغلي دي چې اصحابو کرامو رضي الله تعالى عنهم أجمعين عرض وکړ: «يا رسول الله! مونږ پخپلو زړونو کې بې اختياره داسې شيان مومو چې د هغو په ژبه راوړلو په مقابل کې مونږ دغه بهتره ګڼو چې وسوځيږو او تک تور سکاره وګرځو» نو رسول الله مبارك وفرمايل: «آيا تاسې داسې شيان پخپلو زړونو کې مومئ؟» دوی عرض وکړ چې: «هو!»، نو يې وفرمايل: «ذلک صريح الإيمان» «دغه ښکاره ايمان دی».

لَقَدۡ كَانَ فِي قَصَصِهِمۡ عِبۡرَةٞ لِّأُوْلِي ٱلۡأَلۡبَٰبِۗ مَا كَانَ حَدِيثٗا يُفۡتَرَىٰ وَلَٰكِن تَصۡدِيقَ ٱلَّذِي بَيۡنَ يَدَيۡهِ وَتَفۡصِيلَ كُلِّ شَيۡءٖ وَهُدٗى وَرَحۡمَةٗ لِّقَوۡمٖ يُؤۡمِنُونَ ۝١١١

خامخا په تحقيق په قصه د دوی (يوسف يا د نورو انبياوو يا اممو) کې عبرت (پند) دی لپاره د خاوندانو د عقلونو (خالصو)، نه دی (دغه قرآن) يوه داسې خبره چې له ځانه په دروغو ويلی شوی وي، ليکن دی دغه قرآن تصديق کوونکی او (موافق) د هغو کتابونو چې وو پخوا له دې نه، او دی تفصيل د هر شي (چې محتاج اليه وي په دين کې)، او هدايت دی او رحمت دی لپاره د هغه قوم چې ايمان يې راوړی (په الله او په رسول الله).

تفسير: يعنې دغه خو کومه افسانه نه ده، بلکه تاريخي حقائق دي، ښايي چې له هغه څخه عقلاء او پوهان سبق واخلي، او نه دی دغه قرآن يوه داسې خبره چې په دروغو ويلی شوی وي، وليکن دغه قرآن تصديق کوونکی او موافق دی له هغو کتابونو سره چې وو پخوا له دې نه، او دی تفصيل د هر شي چې محتاج اليه دی په دين کې، او هدايت او رحمت دی لپاره د هغه قوم چې ايمان يې راوړی دی پر الله تعالى او رسول الله.

يعنې پاک قرآن چې په هغه کې قصص بيان شوي دي، کوم له خپل ځانه جوړې کړې خبرې نه دي، د ګردو پخوانيو رښتينو کتابونو تصديق کوونکی دی، او د هر ضروري شي په ښکاره ډول سره بيان کوونکی دی، څرنګه چې ايمانداران له هغه څخه نفع اخلي؛ نو په دغه لحاظ د دوی په حق کې په خاص ډول سره د هدايت او رحمت ذريعه ده.

تمّت سورة يوسف عليه السلام بعون الله تعالى.



# سُورَةُ الرَّعۡدِ

«د (الرعد) سورت مدني دی، پرته له دوو آيتونو څخه چې (۳۱، او ۳۲) دي، له ﴿وَلَوۡ اَنَّ قُرۡاٰنًا﴾ څخه نيولې تر ﴿فَكَيۡفَ كَانَ عِقَابِ﴾ پورې ټول آيات يې (۴۳) او رکوع يې (۶) دي، په تلاوت کې (۱۳) په نزول کې (۹۶) سورت دی، او وروسته د محمد (صلی الله علیه وسلم) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمّٓرٰ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ ؕ وَالَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ الۡحَـقُّ وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَ النَّاسِ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ۝۱

دا آيتونه د کتاب (قرآن) دي، او هغه کتاب چې نازل کړی شوی دی تاته له (طرفه د) رب ستا حق دی، وليکن زيات خلق نه کوي يقين پرې (چې له جانبه د الله دی).

تفسير: يعنې هر هغه شی چې په دغه سورت کې لوستل کيږي، هغه ګرد د عظيم الشأن کتاب آيتونه دي، دغه کتاب چې پر تا د الله تعالی له لوري نازل کړی شوی دی، يقيناً حق او صواب دی، ليکن ډېر د تعجب او حيرانۍ ځای دی؛ چې د داسې صافو او واضحه وو حقائقو له منلو څخه هم اکثر خلق انکار کوي.

اَللّٰهُ الَّذِىۡ رَفَعَ السَّمٰوٰتِ بِغَيۡرِ عَمَدٍ تَرَوۡنَهَا‌ ثُمَّ اسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ‌ وَسَخَّرَ الشَّمۡسَ وَالۡقَمَرَ‌ؕ كُلٌّ يَّجۡرِىۡ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى‌ؕ يُدَبِّرُ الۡاَمۡرَ يُفَصِّلُ الۡاٰيٰتِ لَعَلَّكُمۡ بِلِقَآءِ رَبِّكُمۡ تُوۡقِنُوۡنَ‏ ۝۲

الله هغه ذات دی چې پورته کړي يې دي اسمانونه (او درولي يې دي) بې له ستنو چې وينې تاسې، بيا اوچت شوی دی په عرش باندې (په هم هغه شان چې د ده د الوهيت له شان سره وړ «لايق» ده)، او مسخر کړي يې دي لمر او سپوږمۍ، هر يو (له دوی نه) روان دي تر نېټې معلومې پورې، تدبير کوي د هر امر (کار د ملکوت او سلطنت خپل)، بيانوي (ظاهروي) په تفصيل سره دلائل (د توحيد او قدرت خپل) لپاره د دې چې تاسې په ملاقات د رب خپل يقين وکړئ.

تفسير: يعنې د دې دنيا عظيم الشان هسک (اوچت) او مضبوط سقف چت پاک الله جوړ کړی دی چې تاسې يې ګورئ، او لطف په دې کې دی چې هيڅ يوه ستنه يا طناب يا پايه او ګاډر يعنې يو د تکيې او استناد شی څمونږ په نظر نه راځي، چې پر هغه باندې دومره لوی تعمير او بې سره او بې سامانه چت درولی شوی دی، پرته (علاوه) له دې نه بل څه ويلی شي چې محض د قدرت د غير مرئي ستنو په قوت درېدلی دی، لکه چې په جزء (۱۷) د حج سورت په (۶۵) آيت (۹) رکوع کې فرمايي: ﴿وَيُمۡسِكُ السَّمَآءَ اَنۡ تَقَعَ عَلَى الۡاَرۡضِ اِلَّا بِاِذۡنِهٖ﴾ که د اجسامو د راښکوولو (جاذبې) نظريه صحيح وي؛ نو هغه له دې آيت سره څه منافات نه لري، ځکه چې راښکوولو ته عرفاً عمد نه وايي، او که عمد وويلی شي؛ نو هغه مرئي نه دی، وروي عن ابن عبّاس ومجاهد رضي الله تعالى عنهما والحسن وقتادة وغير واحد رضي الله عنهم: «إنهم قالوا لهما عمد ولكن لا ترى» (ابن كثير)، يعنې دغو مشرانو فرمايلي دي چې: «اسمانونه داسې ستنې لري چې مونږ يې نشو ليدلی، والله أعلم».

د «استواء على العرش» په متعلق په اتم جزء د «الأعراف» په (۵۴) آیت (۷) رکوع کلام شوی دی، هلته دې بیا ولوست شي !.

﴿وَسَخَّرَ الشَّمْسَ﴾ الآیه ـ او مسخّر کړي يې دي لمر او سپوږمۍ هر يو له دوی نه روان دي تر نېټې معلومې شوې پورې، يعنې لمر خپله دوره په يوه کال کې او سپوږمۍ يې په يوه مياشت کې پوره کوي.

يا د ﴿لِأَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ معنی تر مقرر وخت پورې واخیسته شي، نو مطلب به يې دا شي چې لمر او سپوږمۍ داسې روان دي تر قيامت پورې.

وَهُوَ الَّذِي مَدَّ الْأَرْضَ وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْهَارًا ۖ وَمِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ جَعَلَ فِيهَا زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ ۖ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿۳﴾ وَفِي الْأَرْضِ قِطَعٌ مُّتَجَاوِرَاتٌ وَجَنَّاتٌ مِّنْ أَعْنَابٍ وَزَرْعٌ وَنَخِيلٌ صِنْوَانٌ وَغَيْرُ صِنْوَانٍ يُسْقَىٰ بِمَاءٍ وَاحِدٍ وَنُفَضِّلُ بَعْضَهَا عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الْأُكُلِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿۴﴾

او دغه (الله) همغه ذات دی چې غوړولې يې ده ځمکه او پيدا يې کړه په دغې ځمکې کې غرونه ثابت (درانه چې د مضبوطو ميخونو په شان ولاړ دي) او ويالې (د اوبو)، او هرو قسمو مېوو نه يې پيدا کړي دي په دغې ځمکې کې جوړه دوه (لکه سور سپين ـ ژېړ تور ـ خواږه تروه ـ واړه غټ)، پټوي په تياره د شپې سره ورځ، بېشکه په دې مذکوره وو خبرو کې خامخا دلائل دي (د قدرت) لپاره د (هغه) قوم چې فکر کوي (په مصنوعاتو د الله کې). او په ځمکه کې ټوټې دي (مختلفې) څنګ په څنګ پيوستې يو له بل سره او (نور) باغونه دي (په دې ځمکې کې) له انګورو، او کښتونه (فصلونه) دي، او ونې د خرما دي، چې ځينې له يوه بېخه پورته شوي دي او ځينې ځان ځان ته بېخ لري، چې اوبه کولی شي په اوبو يو قسم سره، او غوره کوو ځينې له هغو څخه په ځينو نورو باندې په خوراک (خوند ـ رنګ ـ او ورم کې)، بېشکه په دغو (مذکوره وو اشياوو) کې خامخا دلائل (د قدرت) دي لپاره د (هغه) قوم چې عقل چلوي په کې.

**تفسير:** يعنې: او دغه الله همغه ذات دی چې غوړولې يې ده ځمکه او پيدا يې کړه په دغې ځمکې کې غرونه چې تل په همغه يو ځای کې کلک ولاړ دي، او سيندونه چې هر وخت بهيږي او له هرو قسمو مېوو نه يې پيدا کړي دي په دغې ځمکې کې جوړه دوه يعنې: لوی وړوکي، خواږه تروه، تور سپين، ګرم يخ، او سم له جديده وو تحقيقاتو سره په هر يوه کې نر او ښځه هم موندلی کيږي.

د هسکو (اوچتو) اسمانونو په مقابل کې د ټيټې ځمکې بيان هم ذکر کړ، له اسمان سره د لمر او سپوږمۍ بيان هم وشو، چې د هر يوه تګ سره بېل دی، او د هر يوه کار سره جلا (جدا) دی، د يوې تودې او تېزې اشعې او پلوشې هسې کارونه اجراء کوي؛ چې د هغې بلې د يخې او سپکې روښانې ضيا او وړانګې (پلوشې) څخه هغه په لاس نه راځي، همداسې دلته د ځمکې د مختلفو احوالو او له هغې سره د تعلق لرونکو مختلفو شيانو ذکر وفرمايه، چېرې غر ولاړ دی، چېرې سيند بهيږي، هغه مېوې او ثمرات چې پيدا کيږي، په هغو کې هم د شکل ـ صورت ـ رنګ ـ خوند ـ وړوکوالي ـ او لويوالي بلکه په نر او ښځه کې هم اختلاف دی.

کله ځمکه د ورځې له رڼا څخه رڼه کيږي، کله شپې تک تور نقاب پټونی پر خپل مخ اچولی دی، بيا عجيبه ننداره او غريبه منظره خو دا ده چې د ځمکې هغه څو قطعې چې يوه له بل سره نښتې دي، يا څنګ په څنګ سره پرتې دي، او ځينې يې مټې او ځينې يې شګلوړې ـ او ځينې يې خورا (ډېرې) نا پاکې او ځينې يې پاکې ـ او ځينې يې د کرلو وړ

(لایق) او ځینې یې د نیالګیو (بوزغلی) د کېښنولو لایقې ـ او ځینې یې خوږې او ځینې یې تروې دي، دغه ټول په یو اوبو سره سېراب (پړ) کیږي، او د یوه لمر پلوشې اشعه ګردو ته وررسیږي، او یوه هوا د ځمکې پر مخ چلیږي، او سره له دې دومره قدر مختلفې مېوې او ګلان ترې پیدا کیږي، او یو یو له بل سره د حاصلاتو په تزیید او تنقیص کې دومره فرق او توپیر (تفاوت) لري، چې لیدونکي ورته هک پک حیران پاتې کیږي.

غور او فکر کوونکي د قدرت د دغو دلائلو او نښو له لیدلو څخه پوهیږي چې له همغې یوې د رحمت له وریځې څخه اوبه څښونکي دي، یا له همغه یوه د هدایت د لمر د اشعه او پلوشې څخه رڼیږي، نو له همدغې رحماني وریا (باران) او فیضاني رڼا له هدایت او لارښوونې څخه د انسانانو د مادي او روحاني احوالاتو اختلاف او توپیر (فرق) هم دومره مستبعد او مستنکر نه دی.

وَإِن تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا أَءِنَّا لَفِى خَلْقٍ جَدِيدٍ ۗ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ بِرَبِّهِمْ ۖ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلْأَغْلَـٰلُ فِىٓ أَعْنَاقِهِمْ ۖ وَأُو۟لَـٰٓئِكَ أَصْحَـٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَـٰلِدُونَ ۝٥

او که تعجّب لرې (ای محمده ! له دې نه چې دوی تا نه مني؛) نو لا عجیبه ده (دا) خبره د دوی چې (وایي:) آیا کله چې شو موږ خاورې آیا شو به موږ خامخا په پیدایښت نوي کې؟ ! دوی همغه کسان دي چې کافران شوي دي په رب خپل، او همدغه ګمراهان دي چې د اور طوقونه به وي (په قیامت کې) په غاړو د دوی کې، او دغه (خاوندان د طوقونو) صاحبان (ملګري) د اور دي، دوی به په دې اور کې همېشه وي.

تفسیر: ګواکې دغه خلق له «بعث بعد الموت» څخه انکار کوي، او د پاک الله له مالک الملکوتي او شهنشاهي څخه منکریږي، نو د داسې یاغیانو انجام لازم دی چې همداسې وشي؛ چې د دوی په غاړو کې د اور طوق او غاړکۍ او په لاسونو او پښو کې یې الچکۍ او بیړۍ واچولی شي، او په هغې ابدي بندیخانې کې وغورځول شي، چې په حقیقت کې د همداسې مجرمانو لپاره جوړه کړی شوې ده.

وَيَسْتَعْجِلُونَكَ بِٱلسَّيِّئَةِ قَبْلَ ٱلْحَسَنَةِ وَقَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِمُ ٱلْمَثُلَـٰتُ ۗ وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو مَغْفِرَةٍ لِّلنَّاسِ عَلَىٰ ظُلْمِهِمْ ۖ وَإِنَّ رَبَّكَ لَشَدِيدُ ٱلْعِقَابِ ۝٦

او ژر غواړي دوی له تا نه بدي (عذاب) پخوا له نېکۍ (رحمت) څخه حال دا چې په تحقیق تېر شوي دي پخوا له دوی نه عذابونه (مثالونه د امثالو د دوی چې موجب د عبرت دي)، او بېشکه رب ستا خامخا څښتن (مالک) د مغفرت دی خلقو ته سره له ظلمه (کفره) د دوی (که ایمان راوړي) او بېشکه رب ستا خامخا سخت دی عذاب د ده (کفّارو ته).

تفسیر: یعنې دوی حق نه قبلوي چې په هغه کې د دنیا او آخرت ښېګڼې (فائدې) ور په برخه شي، او کفر اختیاروي او ژر غواړي له تا نه زحمت پخوا له راحت نه، او وایي چې: هغه موعود عذاب دې راوله، او حال دا دی چې په تحقیق سره تېر شوي دي پخوا له دوی نه عذابونه په پخوانیو دروغجن کوونکو باندې، یعنې پخوا له دې نه پر اقوامو عذاب نازل شوی دی، لکه: غرق ـ نسف ـ زلزله ـ صیحه ـ مسخ او نور نو پر تاسې د عذاب نزول آیا مشکل وو؟ ، خبره دومره ده چې ستا پاک الله د خپل حلم او د عفوې له شانه په هر لوی او وړوکي جرم سمدستي نیول نه کوي، دی د خلقو ظلم او تېرې ګوري او پرله پسې ترې تیریږي، تر هغه پورې چې د مظالمو او شرارتونو سلسله له خپله حده تیریږي؛ نو په دغه وخت د ده له تباه او سپېره کوونکي عذاب څخه د نجات هیڅ یو صورت نه پاتې کیږي.

وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَةٌ مِّن رَّبِّهِ ۗ إِنَّمَا أَنتَ مُنذِرٌ ۖ وَلِكُلِّ قَوْمٍ هَادٍ ⑦

او وايي هغه كسان چې كافران شوي دي: ولې نه نازلولى شي په دغه محمد باندې كومه معجزه (په صداقت د ده) له (طرفه د) رب د ده (هغه چې مونږ يې غواړو)، (نو وفرمايل الله په رد د دوى كې): بېشكه همدا خبره ده چې ته وېروونكى يې او لپاره د هر قوم لار ښوونكى (خاوند د خاصې معجزې مقرر) دى.

تفسير: يعنې هغه دلائل د قدرت او نبېي چې مونږ يې غواړو؛ ولې نه نازلېږي؟ چې د هغې له ليدلو څخه مونږ په ايمان راوړلو مجبور كېږو؟ نو وفرمايل رب العزّت جل جلاله په ترديد د دوى كې چې بېشكه همدا خبره ده چې ته اى محمده ويروونكى يې يعنې د آيتونو نزول ستاسې په واك او قبضه كې نه دى، هغه خو د پاك الله كار دى، هر هغه آيت معجزه او دليل چې د رسول د تصديق لپاره د هرې زمانې په اقتضاء سره مناسب وي؛ همغه ورښكاره كوي، نه دا چې هر څه چې منكرين غواړي؛ همغسې به يې وركوي، ستاسې په غاړه هم دغومره كار دى چې د خير غوښتلو خبرې هغوى ته واوروئ ! او د بدۍ له مهلك انجام څخه خلق باخبره كړئ !.

اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنثَىٰ وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ ۖ وَكُلُّ شَيْءٍ عِندَهُ بِمِقْدَارٍ ⑧

الله عالم دى (لا پخوا له تولده) په هغه څه چې بار اخلي هره ښځه او (الله عالم دى) په هغه څه چې كموي يې ارحام (او ناقص يې څېږوي) او (الله عالم دى) په هغه څه چې زياتوي يې (من حيث الأعضاء والجثة والعدد والمدة) او هر شى په نزد د دغه (الله) په اندازه دى.

تفسير: چې نارينه دى كه ښځه؟ پوره دى كه نيمگړى؟ ښه دى كه خراب؟ وغير ذلك من الأحوال، دغه گرد پاك الله ته لا پخوا له تولده ښكاره دي، او ښه ور معلوم دي چې هر هغه چې بار اخلي هره ښځه او هر چې كموي يې ارحام د الله تعالى په اراده يا يې زياتوي (من حيث الأعضاء والجثة والعدد والمدة)، يعنې د حاملې په گېډه كې يو مولود دى؟ كه ډېر؟ كامل مخلوق شوى دى؟ كه ناتمامه دى؟ په لږ مدّت كې به پيدا كېږي يا په ډېر؟ الغرض د ارحامو د تزييد او تنقيص د گردو اسرارو ـ اسبابو ـ اوقاتو او احوالو څخه پوره باخبر دى، او سم له خپل محيط علم سره هر څيز په هر حالت او هره زمانه د هغه له اندازې او استعداد سره موافق ساتي.

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيرُ الْمُتَعَالِ ⑨

(الله) عالم دى په پټو او ښكاره وو چې (گردو څخه) لوى دى، او لوړ برتر دى په هر شي باندې.

تفسير: دغه د الله تعالى د علم د لامحدوده وسعت او احاطې بيان دى يعنې د ټولې دنيا هيڅ يو پټ او ښكاره شى له هغه څخه پټ نه دى، او گرد عالم د ده تر حكم او تصرّف لاندې دى، او په ټول عالم باندې اوچت دى.

سَوَاءٌ مِّنكُم مَّنْ أَسَرَّ الْقَوْلَ وَمَن جَهَرَ بِهِ وَمَنْ هُوَ مُسْتَخْفٍ بِاللَّيْلِ وَسَارِبٌ بِالنَّهَارِ ⑩

يو شان دي له تاسو نه (علم د الله ته) هر هغه څوك چې پټوي خبره (په زړه كې) او هر هغه څوك چې ښكاره كوي دا خبره، او هر هغه څوك چې هغه پټېدونكى دى په شپه كې، او هر هغه څوك چې ظاهروونكى (د عمل خپل) په ورځ كې.

تفسير: د الله تعالى د علم عموم يې بيان كړ، او د مقام په مناسبت د مكلفينو د خاصو احوالو په نسبت دا راښيي چې ستاسې پر هر قول او فعل څمونږ علم محيط دى، هر هغه خبره چې تاسې يې پخپلو زړونو كې پټه كړئ، يا يې په ورو

سره ووايې، يا په علانيه او په چغه سره نارې کړي، يا کوم کار د شپې په تياره کې په پټه سره وکړي، يا دا چې په ورځ په ډانګک پيلې (ښکاره) سره د کوڅو او بازارونو په سر يې ووايي؛ په ګردو احوالو او ټولو حيثيتونو الله تعالی خبردار او د ده د علم په اعتبار سره يو برابر او يو شان دي.

لَهٗ مُعَقِّبٰتٌ مِّنۢ بَيۡنِ يَدَيۡهِ وَمِنۡ خَلۡفِهٖ يَحۡفَظُوۡنَهٗ مِنۡ اَمۡرِ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوۡمٍ حَتّٰى يُغَيِّرُوۡا مَا بِاَنۡفُسِهِمۡ ؕ وَاِذَاۤ اَرَادَ اللّٰهُ بِقَوۡمٍ سُوۡۤءًا فَلَا مَرَدَّ لَهٗ ۚ وَمَا لَهُمۡ مِّنۡ دُوۡنِهٖ مِنۡ وَّالٍ ﴿۱۱﴾

انسان لره (له جانبه د الله ملائکې دي) نوبت په نوبت راتلونکې دي يوله له بلې پسې د مخې له طرفه د دغه (انسان) او د شا له طرفه د دغه (انسان)؛ چې ساتنه کوي د ده په امر حکم د الله سره، بېشکه الله نه بدلوي حالت د هيڅ قوم (چې عافيت او نعمت دی) تر هغه پورې چې بدل کړي دوی هغه ښه حالت چې په نفسونو ځانونو د دوی کې وي (په بد حالت سره چې معصيت دی)، او کله چې اراده وکړي الله پر کوم قوم باندې د بدۍ (آفت)؛ نو نشته بېرته ګرځېدل د هغه، او نشته دوی ته بې له الله څخه هيڅوک متولي (مددګار).

تفسير: يعنې له هر بنده سره د الله تعالی پرښتې مامورې وي، چې له هغوی څخه ځينې د ده ګرد پخواني او وروستني اعمال ليکي، او ځينې د الله تعالی له حکم سره سم ذريعه ګرځي، چې له هغوی څخه هغه بلاوې دفع کړي چې د هغو د دفع اراده الله تعالی له بندګانو څخه ولري، همغسې چې په دغه عالم کې د الله تعالی عام عادت دی.

بېشکه چې الله تغيير نه ورکوي هغه نعمت او عافيت ته چې کومې طائفې سره وي، تر هغه پورې چې تغيير ورکړي دوی هغه حالت د طاعت ته چې په نفسونو د دوی پورې وي په بد حالت سره چې معصيت دی، يعنې الله تعالی پخپلې هغې ساتنې او مهربانۍ سره چې تل د ده له لورې کيږي هيڅ يوم قوم محروم او بې برخې نه ګرځوي، تر هغه وخته پورې چې دوی خپل ښه تګ ـ طاعت او عبادت ـ جميله عادت او حسنه رويه نه وي بدله کړې، او کله چې دوی خپل هغه حالت په بد وضعيت ـ قبيحه اخلاقو او معصيت سره بدل کړي؛ نو داسې آفت پر دوی نازليږي؛ چې له سره بېرته ګرځېدونکی نه وي، او نه د هيڅا مدد هلته په کار ورتلی شي.

هُوَ الَّذِىۡ يُرِيۡكُمُ الۡبَرۡقَ خَوۡفًا وَّطَمَعًا وَّيُنۡشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ ﴿۱۲﴾

دغه (الله) همغه ذات دی چې درښيي تاسې ته برق برېښنا (چې نښه د باران ده لپاره د خوف او ويرولو د هغه چا چې ضرر ورسوي) يا لپاره د طمع (او اميد د هغه چا چې فائده وررسوي، او پيدا کوي) راپورته کوي وريځې درنې (په اوبو په هوا کې).

تفسير: پخوا د بندګانو د حفاظت ذکر وو، بيا د بدو اعمالو له طرفه کوم آفت او مصيبت چې نازل کېدونکی دی؛ د هغه ذکر وشو، او دغه په ښه شان سره رامعلومه شوه چې د الله تعالی شان د انعام او د انتقام د دواړو جامع دی، په همدې مناسبت دلته د قدرت د ځينو داسې نښو په لوري توجه ورکړې شوې ده، چې په هغو کې په يو آن کې توأماً هيله او وېره، خوف او رجاء د دواړو متضادو کيفيتونو د پيدا کولو صلاحيت شته، يعنې کله چې برېښنا برېښي؛ نو خلق هيلمن کيږي، چې اوس به باران اوريږي، او پرله پسې وېره هم ورته پيدا شي، چې د هغه په اثر چېرې تندر او ټکه (چړق) ونه لويږي، او د هلاکت سبب ونه ګرځي، کله چې درنې وريځ له اوبو څخه ډکه راشي؛ نو خلق پرې خوشاليږي چې هغه د باران د رحمت د نزول سبب وګرځي، او متصلاً ورته دغه فکر او چرت (خيال) هم ور لويږي؛ چې چېرې د اوبو طوفان خپان رانشي، او د ربړ (زحمت) او تکليف موجب نشي، عيناً همداسې انسانانو لره ښايي چې د پاک الله رحمت ته هم اميدوار شي، خو ورسره د الله تعالی له مکره هم مأمون او بې فکره نه شي.

﴿وَيُسَبِّحُ الرَّعْدُ بِحَمْدِهِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ مِنْ خِيفَتِهِ ۚ وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ فَيُصِيبُ بِهَا مَنْ يَّشَآءُ وَهُمْ يُجَادِلُونَ فِى اللّٰهِ ۚ وَهُوَ شَدِيدُ الْمِحَالِ ﴿١٣﴾﴾

او تسبيح وايي رعد (پرښته) سره له ثناء د دغه (الله) او تسبيح وايي نورې ګردې پرښتې له وېرې (او له هيبته د الله) نه، او لېږي (الله) تندرونه؛ نو رسوي (غورځوي دغه تندرونه) پر هغه چا چې اراده وفرمايي حال دا چې دغه خلق جګړې کوي په شان د الله کې، حال دا چې الله سخت دی عقوبت د ده (په جګړه کوونکو باندې يا سخت دي نيول د ده).

**تفسير:** يعنې غوريدونکې وربخ يا پرښته د حال يا د قال په ژبه سره د الله تعالى تسبيح او تحميد وايي، لکه چې په (۱۵) جزء د بني اسرائيل سورت په (۴۴) آيت په (۵) رکوع کې مونږ داسې يو آيت لولو: ﴿وَاِنْ مِّنْ شَىْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ﴾ او ګردې پرښتې له هيبته او خوفه د ده په حمد او ثناء او تسبيح او تحميد کې مشغولې او لګيا دي.

له احاديثو څخه دغه خبره څرګنديږي چې د نورو طبيعيه وو نواميسو په شان د وربځو او وريا (باران) د انتظاماتو لپاره هم د پرښتو ډلې مقررې دي، چې دوی وربځې په مناسبو مواقعو رسوي، او له دوی نه حسب الضرورت والمصلحت د کار اخيستلو په تدابيرو لګيا دي.

﴿وَيُرْسِلُ الصَّوَاعِقَ﴾ الآيه ـ «پر دغو جګړه کوونکو د عذاب تندرونه غورځوي»، په حديث کې دي چې پاک رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه عرب متکبر رئيس ته يو سړی ولېږه؛ چې هغه ماته راوله، قاصد د رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه پيغام هغه ته ورسولو، او ورته يې وويل چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم تا بولي، هغه وويل چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم څوک دی؟ او الله څه شيز دی؟ د سرو زرو دی؟ که د سپينو؟ که د مسو؟ (العياذ بالله)، درې ځلې همغه خبره يې وکړله، دريم ځلې کله چې هغه دغه چټي (بېکاره) خبرې وکړې؛ نو يو ناڅاپه يوه وربځ پورته شوه، او على الفور تندر (ټکه) پرې ولوېده، او د هغه کوپړۍ يې له بدن څخه جلا (جدا) کړه.

په ځينو رواياتو کې راغلي دي چې عامر بن طفيل او اربد بن ربيعه د رسول الله مبارک په خدمت کې حاضر شول، او ويې ويل چې: مونږ په دغه شرط سره اسلام راوړو؛ چې وروسته له تاسې اسلامي خلافت مونږ ته ورسيږي، رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوی له دغې غوښتنې څخه انکار وفرمايه، دوی دا خبره وکړه او له مجلسه پاڅېدل، او ويې ويل چې: مونږ به د مدينې وادي ستاسې د مقابلې لپاره له سپرو او پليو (سورو او پياده وو) څخه ډکه کړو، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: پاک الله به د هغوی مخه ونيسي، او د مدينې انصار به د هغوی د مقابلې لپاره ووځي، دوی دواړه لاړل، په لار کې پر «اربد» باندې تندر او ټکه ولوېده، او «عامر» يمن شو، او په طاعوني خاربنت (ګرګک) سره په هلاکت ورسېد.

**فائده:** د رعد د غږ اوربدلو په وخت کې ښايي چې داسې وويل شي: «سبحان الذي يسبّح الرعد بحمده والملائكة من خيفته اللهم لا تقتلنا بغضبك ولا تهلكنا بعذابك وعافنا قبل ذلك».

﴿لَهٗ دَعْوَةُ الْحَقِّ ؕ وَالَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ لَا يَسْتَجِيْبُوْنَ لَهُمْ بِشَىْءٍ اِلَّا كَبَاسِطِ كَفَّيْهِ اِلَى الْمَآءِ لِيَبْلُغَ فَاهُ وَمَا هُوَ بِبَالِغِهٖ ؕ وَمَا دُعَآءُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِىْ ضَلٰلٍ ﴿١٤﴾﴾

خاص همدغه (الله) ته دی دعوت (او بلنه) د حق، او هغه کسان چې بلي يا (عبادت کوي کفار د هغوی) بې له دغه (الله)؛ نه قبلوي دوی (ځواب نه ورکوي دغه اشياء) دغو بلونکو ته په هيڅ شي

سره مګر داسې قبلول لکه قبلول د غځوونکي د داوړو ارغویو خپلو طرف د اوبو ته (د کوهي بې رسۍ او بې بوکې) لپاره د دې چې ورسیږي دغه اوبه خولې د ده ته حال دا چې نه دي دغه اوبه رسیدونکي خولې د ده ته، او نه ده دعا (بلنه) د کافرانو (خپلو معبودانو لره) مګر په زیان او بطلان کې ده.

تفسیر: یعني د هغه ذات بلل پکار دي چې د هر قسم نفع او ضرر مالک دی، د عاجزانو د بلنې څخه څه فائده په لاس درځي؟ ما سوا له الله جل جلاله څخه بل څوک دی چې د هغه په قبضه کې ځما یا د بل چا څه نفع او ضرر وي؟ د غیر الله بلل خپل مدد لپاره داسې دي لکه چې کوم تږی د کوهي او څاه پر سر کې ودریږي، او خپل لاسونه اوږده کړي، او د اوبو په لوري خپل دواړه ارغوي وغوړوي، او خوشامد وکړي چې هله ژر راشه ! بلکه که اوبه د ده په لپه کې هم وي؛ نو هغه پخپله د ده خولې ته نه شي ورتلی.

شاه صاحب (رحمه الله تعالی) لیکي: «هغه کسان چې کفار یې بولي او عبادت یې کوي، ځینې خو محض خیالات او اوهام دي، او ځینې پیریان شیطانان دي، او ځینې داسې شیان دي چې په هغو کې ځینې خواص دي، لیکن د خپلو خواصو مالکان نه دي، نو بیا د هغوی د بلنې څخه څه حاصل؟» لکه اور یا اوبه او ښایي چې ستوري به هم په همدغه قسم کې داخل وي.

وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ ۩

او خاص الله ته سجده کوي هر هغه څوک چې په اسمانونو کې دي او په ځمکه کې دي (تعبداً وانقیاداً سره له اسمانونو او ځمکو، ځینې) په خوښه او (ځینې) په زور، او (سجده کوي) سورې د دغو (مخلوقاتو) په سبا او بېګا کې (یعني همېشه).

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله تعالی) لیکي: «هغه څوک چې پر الله تعالی باندې یقین کوي؛ نو په خوښۍ سره ورته سر ږدي او حکم یې مني، او هغه څوک چې پرې یقین نه لري؛ نو پر هغه باندې بې اختیاره د هغه حکم جاري دی، او سورې چې سبا او بېګا پر ځمکه باندې غوړېږي همدا دي د هغوی سجدې»، مطلب یې داسې شو چې که جواهر وي یا اعراض، هیڅ یو شی د الله تعالی د تکویني حکم څخه نشي خارج کېدی، د ده د نفوذ او اقتدار په مخ کې ګرد سره مطیع او منقاد او سر په سجده دي.

قُلْ مَنْ رَّبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ؕ قُلْ اَفَاتَّخَذْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖۤ اَوْلِيَآءَ لَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا ؕ

ووایه (ای محمده ! دوی ته) څوک دی رب (پالونکی پیدا کوونکی) د اسمانونو او د ځمکې، ووایه (ای محمده ! په ځواب کې) چې الله دی ! ووایه (ای محمده ! دوی ته کله چې تاسې پره او ملزَم شوئ)؛ نو آیا پس نیولي دي تاسې بې له دغه (الله) څخه دوستان چې نه دي مالک (نه لري اختیار دوی) لپاره د نفسونو (ځانونو) خپلو د څه نفع (رسولو) او نه د څه ضرر (د دفع کولو)،

تفسیر: یعني کله چې د ربوبیت اقرار یواځې د پاک الله لپاره کوئ؛ نو بیا د مدد لپاره د نورو دوستانو او مربیانو تجویز د څه لپاره کوئ؟ حال دا چې هغوی د یوې ذرې په اندازه هم د نفعې او د ضرر اختیار او واک نه لري.

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمٰى وَالْبَصِيرُ ۙ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمٰتُ وَالنُّورُ ۚ

ووایه (ای محمده ! دوی ته) آیا برابر دی ړوند (چې کافر دی) او لیدونکی (چې مؤمن دی)؟ بلکه آیا برابرې دي تیارې (چې شرک او انکار دي) او نور (رڼا چې توحید او معرفت دی؟ بلکه نه دي سره برابر).

تفسیر: یعنې د موحّد او د مشرک په منځ کې داسې یو فرق او توپیر (تفاوت) شته لکه د لیدونکي او ړانده، او د توحید دوستان داسې وګڼئ لکه نور (رڼا) او ظلمت (تیاره)، نو آیا یو ړوند مشرک چې د شرک په ظلماتو کې پروت وي، او هر لوري ته لاس او پښې اچوي هغه مقام ته رسېدی شي، چې هلته هغه موحد رسیږي چې د فهم او بصیرت او د ایمان او عرفان په رڼا کې د انساني فطرت په سمه صافه لاره روان وي، له سره دغه دواړه پر یوه نتیجه نه شي رسېدی.

أَمْ جَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ خَلَقُوا كَخَلْقِهٖ فَتَشَابَهَ الْخَلْقُ عَلَيْهِمْ ۚ قُلِ اللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ وَّهُوَ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۱۶﴾

آیا ګرځولي دي دوی الله لره شریکان چې پیدا کول یې کړي دي په شان د پیدا کولو د دغه (الله) نو بیا مشتبه شوه (پیدا کول د دې شریکانو سره د) پیدایښت (د الله سره) پر دوی باندې؟، ووایه (ای محمده ! دوی ته) خاص الله پیدا کوونکی د هر څیز دی، او همدی دی یو قوي غالب (پر هر څیز او هر چا).

تفسیر: یعنې لکه چې الله تعالی ګرد مخلوقات پیدا کړي دي؛ نو ستاسې دغه بُتانو او باطلو معبودانو داسې کوم شی پیدا کړی دی؟ چې د هغه په لیدلو سره د دوی پر الوهیت ستاسې څه شبهه پیدا شوي وي؟ دوی خو د مچ یو وزر او د میاشي یوه پښه هم نه شي پیدا کولی او جوړولی، بلکه دوی پخپله هم د ګردو نورو مخلوقاتو په شان د هغه الله واحد ـ أحد ـ صمد مخلوق دي، نو بیا داسې عاجز او مجبور شیان د الوهیت په تخت کښېنول څومره ګستاخي او سپین سترګي او بې عقلي او حماقت دی؟ !.

أَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَسَالَتْ أَوْدِيَةٌ بِقَدَرِهَا فَاحْتَمَلَ السَّيْلُ زَبَدًا رَّابِيًا ۚ وَمِمَّا يُوقِدُونَ عَلَيْهِ فِي النَّارِ ابْتِغَآءَ حِلْيَةٍ أَوْ مَتَاعٍ زَبَدٌ مِّثْلُهٗ ۚ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْحَقَّ وَالْبَاطِلَ ۚ فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَآءً ۚ وَأَمَّا مَا يَنْفَعُ النَّاسَ فَيَمْكُثُ فِي الْأَرْضِ ۚ كَذٰلِكَ يَضْرِبُ اللّٰهُ الْأَمْثَالَ ﴿۱۷﴾

نازلې کړي دي (الله) له اسمانه اوبه، نو وبهېدل خوړونه په اندازه (د ډکېدو) د دوی سره، نو په سر واخیست دې سیلاب ځګ (او خیری) اوچت شوی (په سر د اوبو)، او له هغو څیزونو چې بلوي پرې (دا خلق لمبې او ویلي کوي) په اور کې لپاره د طلب د ګاڼې یا نور اسباب ځګ (خیري دی) په شان د هغه (ځګ)، په مثل د دې (مذکورو مثالونو) بیانوي الله (مثالونه د) حق او باطل، نو هر څه چې ځګ او خیری (دی)؛ نو لاړ به شي په دغه حال کې چې پرېوتی وي له نظره (او بې نفعې به وي)، او هر څه هغه څیز چې نفع رسوي خلقو ته (لکه اوبه او ویلي شوي فلزات)؛ نو پاتې کیږي په ځمکه کې (للانتفاع)، همداسې بیانوي الله مثالونه (د حق او د باطل لپاره د متفکرینو).

تفسیر: د اسمان له لوري باران نازلیږي، چې له هغه څخه نهرونه، ویالې، خوړونه، سیندونه، دریابونه بهیږي، په هر نهر او خوړ کې سم د هغه له ظرفیته او ګنجایشه هومره چې د پاک الله اراده وي، اوبه بهوي په وړو کې کې لږ ـ او په لوی کې

ډېر، کله چې اوبه بهېږي؛ نو د خاورې ـ خس خاشاک او د نورو له کاره وتلیو له امتزاجه او ګډون څخه خږ او مکدر او خیرن کیږي، بیا دغه خږه او خیری او ځګ یې پړسیږي، او د اوبو په سر راپورته کیږي، لکه چې پر سخت تود اور کې سور او سپین ـ زر ـ مس ـ قلعي ـ اوسپنه ـ فلزات او نور معدنیات ویلي کوي، چې ګاڼې (کالي) ـ لوښي ـ وسلې ـ تورې ـ چړې چوړ کې ـ چاکوګان ـ بیاتیګاني (قینچې) ـ تبې ـ نغرې ـ هرکارې ـ توپ ـ ټوپک ـ ټینکونه ـ طیارې ـ جهازونه ـ موټر ـ رېل ـ یوم ـ تبر ـ او نور د معاش لوازم ـ اسباب او شیان ترې جوړ کړي؛ نو په هغه کې هم داسې لوخړه او ځګ پورته کیږي، مګر لږ څه وروسته هغه وچیږي یا خوریږي، او هغه ځګ او خیری یې ترې لرې او ورک شي، او هغه چې اصلي او کارامد شی دی یعنې اوبه یا ویلي شوي معدني فلزات خالص اوبه به په ځمکه یا د ځمکې د خاوندانو په لاس کې باقي پاتې کیږي، چې له هغه څخه په مختلف ډول سره خلق منتفع کیږي.

همدغه مثال دی د حقو او د باطلو؛ کله چې اسماني وحیې سره حق دین نازلیږي؛ نو د بنیادمانو زړونه هر یو د خپل ظرفیت او استعداد سره سم له هغه څخه فیض حاصلوي، بیا نو حق او باطل یو له بل سره نښلي، نو دوړې او خیري پورته کیږي، او په ظاهر کې باطل د هم هغه خیري او ځګ په شان حق باندې راخیژي، لیکن د هغه دا جزوي جوش او پړسېدل سطحي او عارضي او بې بنیاده شی دی، او لږ څه مدت وروسته د دې دغه جوش او خروش هیڅ یوه نښه او اثر نه پاتې کیږي، او الله خبر دی چې چېرې ځي؟ او هغه اصلي او د کار شی چې د هغو ځګونو لاندې پټ وو، یعنې حق او صداقت پس همغه پاتې وي.

وګورئ چې د پاک الله بیان کړي مثالونه څرنګه عجیب وي؟ او په څومره یوې مؤثرې طریقې سره مو پوهوي چې کله په دنیا کې حق او باطل، کذب او صدق سره ونښلي، یعنې د دغو دواړو په منځ کې جنګي مقابله کیږي؛ نو اګر که د څو مودې له مخې باطل پاس او پړسېدلی په نظر راځي، لیکن بالآخر باطل سره تیت او پرک (منتشر) او همغه حق ظاهر، غالب او بریالی (کامیاب) په نظر راځي.

نو هیڅ یو مؤمن ته نه ښایي چې د باطلو پر عارضي بري او نندارې وغولیږي، همداسې څه وخت چې د کوم انسان په زړه کې حق ځای ونیسي؛ نو نه ښایي چې سړی ترې ویریږي، ځکه چې لږ څه مدت وروسته له دغه ځګ او پړسېدل پخپله ورک کیږي، او خالص حق او صداقت ثابت قائم او مستقر پاتې کیږي.

په پخوانیو آیتونو کې کله چې د توحید او شرک سره مقابله کړی شوې وه، په دغه مثال کې د حق او باطل د مقابلې کیفیت راوښوولو، او د دواړو انجام بیخي په واضح ډول سره اوس بیان فرمایي:

لِلَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمُ الْحُسْنَىٰ ۚ وَالَّذِينَ لَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُ لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لَافْتَدَوْا بِهِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُمْ سُوءُ الْحِسَابِ وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ ۖ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿١٨﴾

شته لپاره د هغو کسانو چې حکم قبول کړی دی دوی د رب خپل (جزا) نېکه (چې جنت دی)، او هغه کسان چې نه وي قبول کړی دوی حکم د دغه (الله) که چېرې وي دوی ته هر هغه څه چې دي په ځمکه کې ټول، او نور هم وي په مثل د دې له دې سره (او په تصرف د دوی کې وي په قیامت کې)؛ نو خامخا به فدیه ورکړي دوی په هغو (ټولو سره؛ نو نه به خلاصیږي له عذابه)، دغه کسان مقرر دي دوی لره بد (سخت) حساب (چې نه به یې نیکي قبوله او نه به یې بدي محو کیږي) او ځای د هستوګنې د دوی دوزخ دی، او بد ځای د آرام دی (دغه دوزخ).

تفسیر: یعنې دلته خو خیر دی په هر قسم چې وي تېریږي، لیکن په آخرت کې د دوی حالت به داسې پرېشانوونکی او ویروونکی وي، که د ګردې دنیا خزائن له نقده، له جنسه، له شرقه تر غربه، له شماله تر جنوبه، او په مثل د دې مذکورو

نور هم وي، له ده سره او دا ټول بيا په تصرف د كفارو كې شي په ورځ د قيامت، او غوښتنه او تمنا وكړي چې مونږ دغه ګرد د خپل ځان په فديه كې وركوو چې د هغه په بدل كې له عذابه خلاص شو، او له دغې پرېشانۍ څخه نجات ومومو؛ نو له سره به يې دغه هيله (اميد) او ارمان په سر ونه رسيږي: «أنى لهم ذلك».

أَفَمَن يَعْلَمُ أَنَّمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ الْحَقُّ كَمَنْ هُوَ أَعْمَىٰ ۚ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ ﴿١٩﴾

آيا نو هغه څوك چې پوهيږي په دې خبره چې بېشكه هغه (قرآن) چې نازل كړى شوى دى تاته له طرفه د رب ستا حق دى (رشتيا) په مثل د هغه چا دى چې دى ړوند وي (د زړه په ستركو ! يعنې نه دى د هغه په شان !) بېشكه خبره همدا ده چې پند اخلي (په دې قرآن) خاوندان د عقلونو خالصو.

تفسير: د مؤمن او د كافر د دواړو انجام بېل بېل د ذكر فرمايلو څخه وروسته تنبيه وركوي چې داسې انجام د عين عقل او حكمت سره موافق دى، هيڅ يو عقلمن داسې نشي ويلى چې يو پوخ ړوند چې هيڅ څيز يې په نظر نه راځي، هم داسې خوشې چټې (بېكاره) په تياره كې لويږي او جيګيږي (وچتيږي)، او بودرې (ټكرې) خوري؛ له هغه سړي سره برابري كولى شي چې د هغه د زړه ستركې هم روښې وي، او په پوره بصارت او كامل بصيرت سره د حق له رڼا څخه مستفيد كيږي.

الَّذِينَ يُوفُونَ بِعَهْدِ اللَّهِ وَلَا يَنقُضُونَ الْمِيثَاقَ ﴿٢٠﴾ وَالَّذِينَ يَصِلُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ وَيَخَافُونَ سُوءَ الْحِسَابِ ﴿٢١﴾

هغه كسان چې وفا كوي په عهد د الله باندې (چې په ورځې د ميثاق يې ورسره كړى دى) او نه ماتوي دوى (هغه) ټينګ عهد. او هغه كسان چې وصل كوي هغه (شى) چې امر (حكم) كړى دى الله په هغه سره داسې چې وصل دې كړى شي (چې د خپلوۍ پالنه له خپلوانو سره ده) او ويريږي دوى له عذابه د رب خپل او خوف كوي له بده حسابه (د قيامت).

تفسير: يعنې له الله تعالى سره هغه عهد چې په ازل كې شوى دى (يعنې د الست بربكم عهد) او پر هغه باندې پخپله د انسان فطرت شاهد دى، او هغه عهد چې د انبياوو عليهم السلام له ژبې اخيستى شوى دى، هغه ګرد دوى پوره كوي، او د هغه څخه هيڅ يو نه ماتوي، او هم بالذات پخپله په هيڅ يوه معامله كې چې له الله تعالى سره يا د ده له بندګانو سره يې تړي، مشروط په دې چې معصيت نه وي؛ له عهده مخالفت نه كوي، او هغه كسان چې وصل كوي هغه شى چې امر او حكم كړى دى الله په هغه سره داسې چې وصل دې كړى شي يعنې صلة الرحم كوي، يا خپل ايمان له عمل سره يا حقوق العباد له حقوق الله سره يو ځاى كوي، يا اسلامي اخوت ټينګ او قائم ساتي، يا د انبياوو عليهم السلام په منځ كې له سره تفريق نه كوي: چې يو مني په نبوت سره او بل ونه مني، او ويريږي له عذابه د رب خپل او خوف كوي له بده حسابه د قيامت، يعنې د الله تعالى د عظمت او جلال له تصوره ډاريږي.

وَالَّذِينَ صَبَرُوا ابْتِغَاءَ وَجْهِ رَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَنفَقُوا مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرًّا وَعَلَانِيَةً وَيَدْرَءُونَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٢﴾ جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ مِنْ آبَائِهِمْ وَأَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ ۖ وَالْمَلَائِكَةُ يَدْخُلُونَ عَلَيْهِم مِّن كُلِّ بَابٍ ﴿٢٣﴾ سَلَامٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ ۚ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٢٤﴾

او هغه كسان چې صبر كوي لپاره د طلب د مخ د رب خپل (په مالي او جاني مصائبو يا د شرعي يا د جهاد په تكاليفو) او قائموي (سم اداء كوي) لمونځ، او نفقه كوي (لګوي په لاره د الله كې) ځينې له هغه (حلالو اموالو) نه چې وركړي دي مونږ دوى ته: هم په پټه او هم په ښكاره، او دفع

کـوي دوی په نېکۍ سره بدي؛ دغه موصوف په دغو صفاتو شته دوی تـه (ښه) عاقبت د دار (د آخرت. چې) جنتونه دي د تل اوسېدلو، چې ننوځي به دوی په هغو کې، او هغه څوك چې صالح (مؤمن) وي له پلرونو د دوی او له ښځو د دوی او له اولادې د دوی (اګر که عمل يې د هغو په درجه نه وي) او پرښتې به ورننوځي له هرې دروازې (ماڼيو د دوی. او وايې به ورته چې) سلامتيـا دې وي پر تاسې په سبب د صبر کولو ستاسو (په طاعت او مصيبت او له معصيت)، نو ښه عاقبت د دار (د آخرت عاقبت ستاسې دی).

تفسير: يعني پر مصائبو او شدائدو او د دنيا پر مکروهاتو يې صبر وکړ، له کومې سختۍ له وېرې د طاعت له لياري څخه يې خپل پل غلط کښېښنبود، او د معصيت په لوري يې ميلان ونه کړ، او دغه صبر او استقلال يې محض د الله تعالی سره د ملاقات او د ليدلو په خاطر او د رضاء او خوښۍ د حاصلولو لپاره وکړ، او د دې لامله يې ونه کړ چې په دنيا کې خلق ورته ډېر صابر او مستقل مزاج ووايي، او نه د دې لپاره يې وکړ چې غير له صبر څخه بله څه چاره نه وه ورپاتې؛ نو مجبورا يې صبر وکړ، او د صابرانو په شان کښېناست.

او نفقه کوي لګوي په لاره د الله کې، د بدۍ ځواب په نېکۍ سره ورکوي، د سختې مقابله په نرمۍ سره ښکاره کوي، که د چا له لوري پرې ظلم او تېرې وشي؛ نو دی ترې تيرېږي، وربخښي يې په دې شرط چې د هغه معافي څخه د بدۍ د ترقۍ انديښنه نه وي، له بدۍ څنې ځان ژغوري (بچ کوي) او نيکي غوره کوي، که کله ترې کوم بد کار صادر شي؛ نو د هغه په مقابل کې ښه کار کوي، يعني ترې توبه وباسي، او د هغې ګناه په عبادت او سخاوت سره تلافي هم کوي؛ نو د دې حسنه وو اعمالو کوونکي لپاره ښه عاقبت د هغه جهان ور په برخه کيږي.

﴿يَدۡخُلُونَهَا وَمَن صَلَحَ﴾ الآيه - يعني چې په همغه جنت کې به همېشه اوسيږي، او پرښتې به ننوځي پر دوی سره له تحائفو او زيري د رضوان له هرې دروازې د ماڼيو د دوی، او وايې به ورته چې: سلامتيا دې وي پر تاسې په سبب د صبر کولو ستاسې په طاعت او مصيبت او له معصيته، نو ښه عاقبت د دار د آخرت عاقبت ستاسې دی.

د «آباء - پلرونو» لفظ يې تغليبًا ويلی دی، چې په هغه کې امهات - ميندې هم شاملې دي، د جنت د زيري دغه زيات بشارت يې هم واوروه؛ چې داسې کاملينو ته د هغو پاس بيان شوی، ښو خويونو او خصالو په بدل يو دغه نعمت او خوشالي به هم حاصل وي؛ چې دوی سره له خپلو هغو ميندو او پلرونو او اولادونو او ښځو چې د خپل ايمان او نېکۍ لامله د جنت د دخول لايق شوي وي؛ ګرد سره يو ځای کيږي، تر دې که د دغو متعلقينو د کوم يو رتبه کمه هم وي؛ نو حق تعالی پخپلې مهربانۍ سره د هغه رتبه هم لوړوي (اوچتوي)، او دغه کامل سړي سره يې نژدې کوي، لکه چې په (۲۷) جزء د «الطور» سورت په (۲۱) آيت اوله رکوع کې راغلي دي: ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتۡهُمۡ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَٰنٍ أَلۡحَقۡنَا بِهِمۡ ذُرِّيَّتَهُمۡ﴾.

له دې نه معلومه شوه چې بې له ايمان او بې له صالح عمله محض د کاملينو قرابت کافي نه دی، هو ! که ايمان او صالح عمل موجود وي؛ نو د قرابت له تعلقه د درجاتو ترقي ممکنه ده، والله أعلم.

﴿وَالَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهۡدَ ٱللَّهِ مِنۢ بَعۡدِ مِيثَٰقِهِۦ وَيَقۡطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ وَيُفۡسِدُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱللَّعۡنَةُ وَلَهُمۡ سُوٓءُ ٱلدَّارِ ۝٢٥﴾

او هر هغه کسان چې ماتوي دوی عهد د الله وروسته د محکموالي د هغه (په قبول او اقرار سره) او پرې کوي دوی هغه شی چې امر (حکم) کړی دی الله په هغه سره چې وصل دې کړی شي، او فساد کوي دوی په ځمکه کې (په کفر او ظلم سره)؛ دغه کسان شته دوی ته لعنت لرې والی له رحمت د الله (دنيوي عذاب)، او شته دوی ته بد عاقبت د دار (د آخرت چې اور دی).

تفسیر: د سعداوو او نېکبختانو په مقابل کې دلته د اشقیاوو عادات او خصال او د دوی آخري پای (خاتمه) او انجام ښوولې شوی دی، د اشقیاوو کار دا دی چې له الله تعالی سره بد عهدي کوي، د هغو شیانو د وصل او پیوند کولو حکم چې صادر شوی وي؛ هغه ماتوي، په ملک کې د فتنې او فساد اور اچوي، پر خپل ځان او نورو باندې له ظلم کولو څخه لاس نه اخلي، همدغه خلق دي چې د الله تعالی له رحمته لرې غورځولي شوي دي، او له ډېرو بدو ځایونو څخه یو ځای ته رسېدونکي دي.

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ وَفَرِحُوْا بِالْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا مَتَاعٌ ﴿۲۶﴾

الله پراخوي رزق روزي هر هغه چا ته چې اراده وفرمايي د (فراخی يې) او تنګوي (يې پر هغه چا چې اراده وفرمايي د تنګولو يې)، او خوشاله دي (کفّار) په دې ژوندون لږ خسيس، او نه دی دا ژوندون لږ خسيس په (مقابل د) آخرت کې مګر لږ متاع (حقير مال).

وَيَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ يُضِلُّ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْٓ اِلَيْهِ مَنْ اَنَابَ ﴿۲۷﴾

او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي: ولې نه ده رالېږلې شوې پر دغه (محمد) باندې (هغه معجزه په نبوت د ده چې مونږ يې وغواړو) له (طرفه) د رب د ده؟ ووايه (ای محمده دوی ته) بېشکه الله ګمراه کوي هغه څوک چې اراده وفرمايي، او هدايت کوي په طرف خپل (سمه صافه لاره ښيي ې د ليدلو د آيت) هغه چاته چې رجوع وکړي (الله ته).

تفسیر: مشرکينو په سلهاوو معجزې او نښې کتلې، مګر د خپلو هغو خبرو څخه له سره نه اوښتل چې هغه معجزه او نښه چې مونږ يې غواړو؛ راوښيه ! مثلاً د مکې معظمې غرونه ځمونږ له شاوخوا څخه لرې کړه ! چې د کرلو او زراعت لپاره څه وسعت پيدا شي، يا ځمکې څيرې کړه چينې او ويالې راوبهوه ! يا ځمونږ پخواني مشران بيا راژوندي کړه ! او له مونږ سره يې په خبرو او اترو راوله.

الغرض کومه داسې يوه معجزه راوښيه چې مونږ په ايمان راوړلو باندې مجبور کړي، نو د هغه ځواب داسې ورکوي چې بېشکه الله تعالی د داسې معجزې او نښې پر ښوولو قدرت لري، ليکن د ده حکمت او عادت د دې خبرې مقتضي نه دی چې ستاسې د داسې غوښتنې تکميل وکړي، د انبياوو عليهم السلام د تصديق لپاره هومره چې ضرورت دی؛ له هغه څخه زائدې نښې او معجزې درښوولې شوي دي، او درښوولې کيږي، د نورو سلهاوو معجزاتو څخه سترګې واړوئ، يواځې همدغه پاک قرآن د نبي الله د صداقت يو عظيم الشأن نښان دی، کله چې تاسې سره د دغو د ليدلو سره پر سمه لار رانغلئ، او د حق په لوري مو رجوع ونه کړه؛ نو معلومه شوه چې سم له قديمي قانون سره د پاک الله مشيئت پر هم دې خبرې تللی دی، چې تاسې په همغه چې تاسې غوره کړې لاره چې ګمراهي ده؛ خوشي کړي، بلا شبهه تاسې سره له دومره لويې معجزې او نښې د ليدلو سره بيا هم ايمان نه راوړئ، او د هغه په لوري رجوع نه کوئ.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِكْرِ اللّٰهِ ؕ

(دغه رجوع کوونکي) هغه کسان دي چې ايمان يې راوړی دی او ارام نيسي زړونه د دغو په ذکر د الله سره،

تفسیر: دا د الله تعالی په طرف د رجوع کوونکو بيان دی، يعنې د چا چې د ايمان دولت په برخه کيږي؛ نو له ذکر الله يعني د الله تعالی له ياده اطمينان او ډاډينه (سکون) حاصلوي، ځکه چې له ګردو څخه لوی ذکر خو لوی قرآن دی: ﴿اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ﴾ چې د هغه په لوستلو په زړونو کې د يقين کيفيت پيدا کيږي، او شيطاني شبهات او وسوسې لرې

کيږي، او سکون او اطمينان ور ميسر کيږي، له يوه جانبه که د الله تعالی عظمت او مهابت په زړونو کې خوف او خشيت پيدا کوي؛ نو له بله طرفه د رب العالمين لا محدود رحمت او مغفرت د قلبي سکون او راحت سامان وررسوي.

الغرض د دوی زړونه له هر لوري څخه مات وي، او يواځې د پاک الله په لوري ګرځي، او د همغه په لويي او قدرت باندې ځان سپاري، او د ذکر الله نور د دوی له قلوبو څخه نور هر ډول دنيوي وحشت او وېره ورکه کوي.

اَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَىِٕنُّ الْقُلُوْبُ ﴿٢٨﴾

واورئ خبردار شئ ! چې په ذکر د الله سره مطمئن کيږي ارام نيسي زړونه (د مؤمنانو).

تفسير: يعنې دولت ـ حکومت ـ منصب ـ جايداد او د فرمايشي معجزو ليدل او نور شيان له سره انسان ته حقيقي سکون، اطمينان او ارام نشي يو ځای کولی، يواځې له ذکر الله څخه هغه مع الله تعلق راحاصليږي، چې له هغه څخه د زړونو اضطراب او وحشت لرې کيږي.

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ طُوْبٰى لَهُمْ وَحُسْنُ مَاٰبٍ ﴿٢٩﴾

هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) طوبی (ښه حال) دی دوی ته، او ښه ځای د هستوګنې (جنت) دی.

كَذٰلِكَ اَرْسَلْنٰكَ فِيْٓ اُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَآ اُمَمٌ لِّتَتْلُوَا۟ عَلَيْهِمُ الَّذِيْٓ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ ؕ قُلْ هُوَ رَبِّيْ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ مَتَابِ ﴿٣٠﴾

همدارنګه (لکه چې مو ليږلي وو انبياء پخوا له تا) ليږلی يې مونږ ته (ای محمده !) په داسې يو امت کې چې په تحقيق تېر شوي دي پخوا له دې نه ډېر امتونه، چې ولولې ته پر دوی هغه (قرآن) چې وحي کړې ده مونږ تاته، حال دا چې دوی کافران دي په رحمان، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې دغه (رحمن) رب ځما دی، نشته بل هيڅ لايق د عبادت مګر يواځې همدی دی، پر همده توکل کړی دی ما او خاص همده ته بيا ورتله او رجوع زما دي.

تفسير: يعنې ای محمده صلی الله عليه وسلم ! ستا ټاکل (مقررول) او لېږل پر نبوت باندې کومه عجيبه او نوې خبره نه ده، پخوانيو امتونو ته هم انبياء ليږلي شوي دي، نو هغه بد عاقبت او خرابه نتيجه چې د هغو مکذبينو شوې ده؛ ښايي چې هغه احوال دې د دغو خلقو تر نظر لاندې هم وي.

﴿وَهُمْ يَكْفُرُوْنَ بِالرَّحْمٰنِ﴾ «حال دا چې دوی کافران دي په رحمان باندې»، يعنې «رحمن» په خپل کامل رحمت دغه عظيم الشأن قرآن نازل کړی دی، ﴿اَلرَّحْمٰنُ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ﴾ او ته مو ای محمده رسول الله صلی الله عليه وسلم ! رحمة للعالمين ګرځولئ او لېږلی يې، مګر دوی سختې ناشکری او د نعمت کفران ته ملاوې تړلې دي، د «رحمن» د حق منلو څخه منکران شوي دي، بلکه د «رحمن» او «رحيم» له نامه څخه هم سخت وحشت خوري او ترې ترهيږي، نو ځکه د «حديبيه» په صلحنامې (روغليکه) کې دوی پر ﴿بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ﴾ ليکلو باندې جګړې کولې.

وَلَوْ اَنَّ قُرْاٰنًا سُيِّرَتْ بِهِ الْجِبَالُ اَوْ قُطِّعَتْ بِهِ الْاَرْضُ اَوْ كُلِّمَ بِهِ الْمَوْتٰى ؕ بَلْ لِّلّٰهِ الْاَمْرُ جَمِيْعًا ؕ

او که په تحقيق يو قرآن (داسې وی په عالم کې چې) روان کېدلی په (لوستلو د) ده سره غرونه، يا څيرېدلی ټوټې ټوټې کولی شو پرې ځمکه، يا په خبرو راوستلی شو په هغه سره مړي؛ (نو بيا

به هم ايمان نه وو راوړی دوی)، بلکه خاص الله ته دی (اختيار د دې) امر ټول (او الله يې کولی شي هر کله چې اراده وفرمايي).

تفسير: دلته له قرآن څخه عام کتاب مراد دی، لکه چې په يو حديث کې پر «زبور» شريف د قرآن د لفظ اطلاق شوی دی، يعنې که کوم داسې يو کتاب لېږلی کېدی چې په هغه سره ستاسې د غه غوښتلې شوې معجزې او نښې پوره کېدی؛ نو هغه به پر ته (علاوه) له همدغه قرآن کريم څخه بل کوم کتاب کېدی شو، همدغه قرآن عظيم دی چې په روحاني ډول سره د غرونو په شان وچ کلک خلق يې له خپلو ځايونو څخه وخوځول، د بنيادمانو د زړونو ځمکې يې څيرې کړې، او د الله تعالى د معرفت چينې يې ورڅخه راوبهولې، او د وصول الى الله لارې يې د کلونو په ځای په څو شيبو (لحظو) کې پر دوی پرې کړې، په مړو قومونو کې او په مړو زړونو کې يې د ابدي ژوندون روح ورننه ايسته، کله چې له داسې لوی قرآن څخه تاسې ته شفاء او هدايت روزي نه شو، نو فرض يې کړئ که ستاسې د غوښتنې سره سم دغه عظيم الشان قرآن په مادي او حسي ډول (طريقه) سره هم هغه ګرد (ټول) شيان تاسې ته دروښيي، چې تاسې يې غواړئ؛ نو بيا هم له تاسې داسې هيله (ارزو) او اميد نشي کېدی، چې تاسې به ايمان راوړئ.

أَفَلَمْ يَاْيْـَٔسِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَنْ لَّوْ يَشَآءُ اللّٰهُ لَهَدَى النَّاسَ جَمِيْعًا ۗ وَلَا يَزَالُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا تُصِيْبُهُمْ بِمَا صَنَعُوْا قَارِعَةٌ اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ حَتّٰى يَاْتِيَ وَعْدُ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿٣١﴾

آيا لا نااميده شوي نه دي هغه کسان چې ايمان لرونکي دي (له ايمان د دغو کسانو په داسې حال کې چې دغه مؤمنان پوهيږي) که اراده فرمايلې وی الله (د هدايت د ټولو خلقو)؛ نو خامخا به يې هدايت فرمايلی وو ټولو خلقو ته (نو ايمان نه راوړي مګر هغه چې الله اراده د ايمان راوړلو يې وفرمايي)، او همېشه هغه کسان چې کافران شوي دي؛ رسيږي دوی ته په سبب د هغو عملونو چې کړي دي (د عناد او تکذيب نه) زړه ټکوونکی يا خوځوونکی عذاب، يا چې ښکته شي (دغه قارعه يا ته ای محمده) نژدې کورونو د دوی ته تر هغه پورې چې راشي وعده د الله (په نصرت د تا او ترقي د دين)، بېشکه چې الله هيڅېرې نه کوي خلاف له وعدې (خپلې).

تفسير: يعنې دغه د مکې معظمې کفار سره د خپلو غوښتلو شويو معجزو او دلائلو د ليدلو هم ايمان راړونکي نه دي، دوی خو به داسې هغه ومني چې برابر کوم آفت او مصيبت پخپله پر دوی يا د دوی په شاوخوا خلقو ولويږي، او دوی د هغه د ليدلو څخه عبرت حاصل کړي، مثلاً په جهاد کې د مسلمانانو په لاسونو د دوی څه سړي مړه شي، يا يې څه سړي بنديان شي، او څه يې د څه نورو مصائبو په منګولو کې ولويږي، دغه سلسله به تر هغه وخته پورې دوام ولري چې د پاک الله وعده پوره شي، يعنې مکه معظمه فتحه شي، او «جزيرة العرب» د شرک له ګندګۍ څخه پاکه او صافه شي، بېشکه د الله تعالى وعده قاطعه او يقيني ده، او هرومرو (خامخا) پوره کېدونکې ده.

ځينو مفسرانو په ﴿اَوْ تَحُلُّ قَرِيْبًا مِّنْ دَارِهِمْ﴾ کې د رسول الله په لوري خطاب منلی دی، يعنې چې تاسې د دوی کلي ته نژدې ورښکته شئ، لکه چې په «حديبيه» کې وشو، نو په دغه تقدير سره له «قارعه» څخه به هغه سرايا مراد وي؛ چې په هغوی کې رسول الله مبارک صلى الله عليه وسلم بالذات شرکت فرمايلی دی، له ځينو اسلافو څخه منقول دي چې دغه آيت د ګردو کفارو په حق کې عام دی، او په مکيانو (مکې والاوو) پورې څه تخصيص نه لري، والله أعلم.

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَمْلَيْتُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ ۗ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ﴿٣٢﴾

او خامخا په تحقيق مسخرې کړی شوې وې له (نورو ډېرو) رسولانو پخوا له تا نه (لکه چې ستا قوم په تا پورې کوي)؛ نو مهلت مې ورکړی وو هغو کسانو ته چې کافرانو شوي وو (پس له

تمسخره څه مدت په عشرت کې)، بیا مې ونیول دوی (په عذاب سره)، نو څرنګه به وو عقوبت (عذاب ځما یعنې ډېر سخت وو).

تفسیر: یعنې که په سزا رسېدلو کې څه ځنډ وشي؛ نو داسې مه ګڼئ چې نجات مو وموند، پخوانیو مجرمینو ته هم ړومبی مهلت ورکړی شوی وو، بیا کله چې ونیول شول؛ نو وګورئ چې په داسې بده ورځ اخته شول، چې تر ننۍ ورځې پورې د دوی د تباهي او بربادۍ قصې د خلقو پر ژبو باندې جاري دي.

﴿أَفَمَنْ هُوَ قَآئِمٌ عَلَىٰ كُلِّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ۗ وَجَعَلُوا۟ لِلَّهِ شُرَكَآءَ قُلْ سَمُّوهُمْ﴾

آیا نو هغه ذات چې وي دی ولاړ (ساتونکی) پر هر نفس (صالح او طالح باندې) سره له هغه عمل چې کړی وي (او په جزا یې هم رسوي؛ دا داسې دی لکه هغه څوک چې داسې نه وي؟ بلکه داسې نه دی !)، او ګرځولي دي (کفارو) الله ته شریکان، ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې واخلئ نومونه د دوی (او اداء کړئ صفتونه د دوی چې آیا مستحق د عبادت او شرکت دي که نه دي؟).

تفسیر: یعنې هغه الله چې د هر انسان هر عمل په هر وخت کې لیدی شي، او هر شی د ده تر کتنې لاندې دی، او یوه شیبه (لحظه) له هیڅ شي نه نه غافلیږي، که څوک لږ څه شرارت هم وکړي، په همغه وخت کې یې جزا ورکوي، او هم ورته تنبیه ورکولی او په سزا یې رسولی شي، نو آیا مجرم له دې نه ځان خلاصولی شي؟ او چېرې تښتېدلی شي؟ آیا «العیاذ بالله» د ده مثال د هغو تیږو (ګټو) او نورو بتانو او باطلو معبودانو په شان کېدی شي، چې دوی نه لیدلی شي، او نه او ورېدلی شي، او نه د خپلو ځانونو او نه د نورو څخه څه ضرر دفع کولی شي، او نه څه ګټه (فائده) وررسولی شي، او نه یې څه اختیار شته، ډېر تعجب دی، چې د داسې واحد او احد له موجودیت سره دوی د داسې عاجز او حقیر مخلوق په مخ کې ولې سر ښکته کوي؟.

﴿قُلْ سَمُّوهُمْ﴾ یعنې لږ څه خو وړاندې لاړ شئ، او د دغو شریکانو نومونه خو واخلئ ! او سراغ او پته یې راوښیئ ! آیا د پاک الله د دغو صفاتو له اورېدلو څخه چې پاس مو واورېدل؛ کوم حیاء داره سړی به د هغو تیږو (ګټو) نوم هم اخیستی شي ! او که کوم مشرک له بې حیایي څخه د «لات» او «عزی» نوم واخلي؛ نو آیا کوم عاقل به په هغه لوري التفات هم کولی شي؟.

﴿أَمْ تُنَبِّـُٔونَهُۥ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِى ٱلْأَرْضِ أَم بِظَـٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ﴾

بلکه آیا خبر ورکوئ تاسې الله ته په هغه باطل معبودانو چې نه دي معلوم الله ته په ځمکه کې (یعني نشته، که وي؛ نو معلوم به وو الله ته)، بلکه (مسمّی کوي دوی شرکاء) په ظاهره وینا سره (بې له اعتباره د معنی)؛

تفسیر: یعنې پاک الله ته د ټولې ځمکې په مخ کې د خپل الوهیت هیڅ یو شریک او حصه دار نه دی معلوم، ځکه چې هغه خو له سره نشته، چې معلوم وی نو آیا تاسې هغه ته داسې شی ښوولی شئ؛ چې ده ته نه دی معلوم؟ العیاذ بالله.

﴿أَم بِظَـٰهِرٍ مِّنَ ٱلْقَوْلِ﴾ پخوا یې وفرمایل چې: د دغو شرکاوو خو لږ څه نومونه راوښیئ ! بیا یې تنبیه وفرمایله چې د هغه شي چې په واقع کې له سره ثبوت نشته؛ نو تاسې به یې نوم څرنګه اخیستی شئ؟ اوس دا راښیي چې د کوم څیز پاک الله ته شریک پیدا کول تش الفاظ محض او یو غږ دی، چې د هغه لاندې هیڅ حقیقت نشته، له مجردو ظنونو او تخمینونو او باطلو اوهامو څو بې معنا الفاظ له سره بامعنی نه شي کېدی.

بَلْ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مَكْرُهُمْ وَصُدُّوا عَنِ السَّبِيلِ ۗ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَمَا لَهُ مِنْ هَادٍ ﴿٣٣﴾

(داسې نه دي) بلكه ښايسته كړى شوى دى هغو كسانو ته چې كافران شوي دي مكر دروغ د دوى، او بند (او اړولي) شوي دي دوى له سمې لارې (د دين څخه)، او هر څوك چې ګمراه كړي الله (هغه لره)؛ نو نشته ده لره هيڅ لارښوونكى (د سمې صافې لارې).

تفسير: يعني هر هغه چا ته چې الله تعالى د هدايت توفيق ور نه كړي؛ دى به څوك په سمه لاره راوستى شي؟ ! او الله تعالى همغه ته توفيق ور په برخه كوي چې پخپل اختيار د هدايت ورونه پر خپل ځان نه تړي.

لَّهُمْ عَذَابٌ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۖ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَقُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّنَ اللَّهِ مِن وَاقٍ ﴿٣٤﴾

شته دوى ته عذاب په ژوندانه لږ خسيس كې (په قتل، حبس، قحط او نورو ربړو «تكليفونو» سره)، او خامخا عذاب د آخرت ډېر سخت دى (له عذابه د دنيا)، او نه به وي دوى ته له عذابه د الله څخه هيڅ ساتونكى.

تفسير: يعني مقرر دي كافرانو ته دنيوي عذابونه د مجاهدينو په لاسونو يا بلا واسطه د الله تعالى له طرفه، او خامخا عذاب د آخرت ډېر سخت دى، او نه به وي دوى ته له عذابه د الله تعالى څخه هيڅ ساتونكى، يعني بې له سزا وركولو څخه به يې نه پرېږدي، نو بيا د هغه ځاى د سزا وركولو څخه يې څه پوښتنه كوئ؟.

مَّثَلُ الْجَنَّةِ الَّتِي وُعِدَ الْمُتَّقُونَ ۖ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ أُكُلُهَا دَائِمٌ وَظِلُّهَا ۚ

مثال (صفت) د جنت هغه چې وعده كړى شوې ده (په هغه سره) پرهيزګارانو ته (دا دى چې) بهيږي (همېشه) له لاندې (د باغونو او ماڼيو) د هغه ويالې، مېوې د هغې به همېشه (بې انتهاء بلا انقطاع) وي، او سورى د هغه (به هم همېشه وي بې زواله).

تفسير: چې د هغه هيڅ نوعه هيڅكله نه ختميږي، او تل به همغه شى وررسيږي چې دى يې وغواړي: ﴿لَّا مَقْطُوعَةٍ وَلَا مَمْنُوعَةٍ﴾ (د الواقعه سورت اوله ركوع، ۳۳ آيت، ۲۷ جزء).

تِلْكَ عُقْبَى الَّذِينَ اتَّقَوا ۖ وَّعُقْبَى الْكَافِرِينَ النَّارُ ﴿٣٥﴾

دا (جنت) عاقبت (او مرجع) دى د هغو كسانو چې پرهېزګاري كوي، او عاقبت د كافرانو اور (د دوزخ) دى.

تفسير: يعني په دغه آيت كې د أهل الحق او د أهل الباطل خاتمه او انجام يو د بل په مقابل كې سره بيان وفرمايه، وبضدها تتبين الأشياء.

وَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَفْرَحُونَ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْكَ ۖ وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَن يُنكِرُ بَعْضَهُ ۚ قُلْ إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللَّهَ وَلَا أُشْرِكَ بِهِ ۚ إِلَيْهِ أَدْعُو وَإِلَيْهِ مَآبِ ﴿٣٦﴾

او هغه كسان چې وركړى دى مونږ دوى ته كتاب (او بيا يې اسلام هم راوړى دى)؛ خوشاليږي په هغه (قرآن) چې نازل شوى دى تا ته او ځينې له فرقو (د اهل الكتاب) څخه هغه دي چې نه مني ځينې احكام د دې قرآن، ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشكه امر (حكم) شوى دى ماته په دې

چې عبادت کوم زه د الله، او شریک نه نیسم له دغه (الله) سره (هیڅوك په عبادت کې)، خاص د همغه طرف ته بولم (تمام عالم) او خاص همده ته دي ورتله (ځما او د ټولو په آخرت کې).

تفسیر: هغوی ته چې اوس قرآنکریم ورکړی شوی دی یعني مسلمانان، او هغوی ته چې پخوا له دې نه تورات ـ انجیل او نور ورکړی شوي دي یعني یهودان او نصرانیان؛ د هغه شي د اورېدلو څخه خوشالیږي چې پر تاسې نازل کړی شوی دی، د مسلمانانو خوښېدل خو ظاهر دي چې دوی همدغه کتاب د دارینو د فلاح مفتاح (کونجي) ګڼي، باقي په یهودو او نصاراوو کې هغه خلق چې اهل العلم او د انصاف خاوندان او في الجمله حق منوونکي وو؛ نو هغوی ته هم د یوه راز (قسم) مسرّت موقع وه، ځکه چې هغوی به لیدل چې لوی قرآن په څه ارته سینه د دوی د اصلي کتابونو په تصدیق او د انبیاوو په تعریف او تعظیم کې رطب اللّسان دی، بلکه د ربنتینو احبارو او رهبانانو وجود هم په مدح کې معروض شوی دی.

﴿ذٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا﴾ (د المائدې سورت ۱۱ رکوع)، لکه چې همداسې قسم منصف او حق خوښوونکي یهود او نصاری بالآخره په اسلام سره هم مشرّف شول.

﴿وَمِنَ الْأَحْزَابِ مَنْ يُنْكِرُ بَعْضَهُ﴾ یعني یهود او نصاری، یا د عربو جاهلانو هغه جماعات هم دي چې له پاك قرآن څخه ځکه ناخوښ دي؛ چې دوی د دې قرآن د ځینو شیانو څخه انکار کړی دی، او دا همغه شیان دي چې د دوی د تحریف او تبدیل یا د آراوو او أهواؤو په خلاف دغه لوی قرآن بیان فرمایلی دی.

وَكَذٰلِكَ أَنْزَلْنٰهُ حُكْمًا عَرَبِيًّا ۚ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا وَاقٍ ﴿۳۷﴾

او لکه (چې نورو انبیاوو ته پخوا مو کتابونه لیږلي وو په ژبو د قومونو د دوی؛) نازل کړی لیږلی مو دی دغه (قرآن) حکم کوونکی په عربي ژبه، او قسم دی که متابعت وکړې ته (ای محمده!) د خواهشونو د دغو (مشرکانو او کتابیانو) وروسته له هغه چې راغلی دی تاته علم (په توحید او په نسخ د دین د دوی)؛ نو نه به وي تاته له جانبه د الله څخه هیڅ ولي (یار مددګار) او نه ساتونکی (له عذابه د الله).

تفسیر: یعني لکه چې ړومبی پخواني کتابونه رالیږلي شوي دي؛ په دغه وخت کې دا قرآن رانازل کړ شو، چې پر لوړ (اوچت) او عظیم الشأن معارفو او حکمونو مشتمل او د حق او باطل آخري فیصله کوونکی دی، بیا همغسې چې هر نبي ته په همغه ژبه کې کتاب ورکړی شوی دی چې د هغه قومي ژبه ده، همداسې محمد عربي صلی الله علیه وسلم ته هم عربي قرآن ورکړی شوی دی، بلا شبهه د دې عظیم الشأن قرآن په شان معجز او جامع کتاب ښایي په همداسې یوې ژبې نازلېده چې نهایته بلیغه ـ وسیعه ـ جامعه ـ منضبطه ـ واضحه او پر مغزه وي، او د پر شوکت توب لامله د «أم اللغات وملکتها» د صفت وړه او مستحقه وي.

﴿وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُمْ﴾ الآیه ـ یعني د هیچا د انکار او د ناخوښۍ د یوې ذرې په قدر پروا مه کوئ، هغه کامل او عظیم عالم چې الله تعالی تاته درکړی دی؛ د همغه متابعت کوئ! که بالفرض د دې خلقو د دغو غوښتنو په لوري متمائل شوئ؛ نو د هغه له وبال څخه به دې څوك وژغورلی (بچ کړی) شي؟ دغه خطاب د حق ګردو (ټولو) طالبانو ته دی، اګر که دلته پخپله رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مخاطب دی، خو مقصود له دوی سره خطاب او نورو ته اورول او لارښوونه ده، په صواب لکه چې پخوا له دې نه په څو نورو ځایونو کې د ده اشباه او نظائر تېر شوي دي.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّن قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً ۚ وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَن يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ لِكُلِّ أَجَلٍ كِتَابٌ ﴿٣٨﴾

او خامخا په تحقيق لېږلي وو مونږ ډېر رسولان (انسانان) پخوا له تا نه (لکه چې رالېږلی مو یې ته) او ورکړي وو مونږ دوی ته ښځې او اولادونه، او نه ښايېږي لپاره د هيڅ رسول (او نه توانيږي) دا کار چې راوړي داسې يوه معجزه (چې خلق يې غواړي) مګر په اذن د الله سره، لپاره د هر وخت او حادثې يو حکم دی (چې پخپله نېټه همغسې کيږي).

تفسير: يعنې عربي رسول ته نوې کتاب او نوي احکام ورکول او مبعوثول کومه نوې او عجيبه خبره ده؟ چې دومره حجّتونه پيدا کوي؟ آخر مونږ پخوا له دې نه هغه انبياء عليهم السلام چې ليږلي دي، هغوی د اسمان پرښتې نه وې، او د همدې دنيا له هستېدونکو څخه انسانان وو، چې ډوډۍ به يې خوړه او خپل ګرد ضروريات به يې پخپلو لاسونو سره پوره کول، او د ښځو او وړکيو خاوندان به وو، په دوې کې هيڅ يوه د دې خبرې قدرت نه درلود؛ چې هرومرو همغه خلقو ته وروښيي چې هغوی يې غواړي، بلکه د موجوده رسول الله په شان هر شي کې د پاك الله تعالی اذن ته منتظر وو، او همغه معجزې به يې ورښوولې، او همغه احکام به يې اورول چې دهغه اذن د الله تعالی له درباره کېده.

بيا کله چې هر نبي د خپلې زمانې سره مناسب احکام راوړي، صداقت ورښوولو لپاره د عمومو د غوښتنو تکميل ته اړ (محتاج) او مجبور نه وي، او نه يې خپل ځان د بشريه وو حوائجو او معاشرتي تعلقاتو څخه بې پروا او پورته ظاهر کړی وي، نو د همدغو شيانو موجوديت په محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم کې د دوی له نبوت څخه د انکار دليل څرنګه کېدی شي؟.

يَمْحُو اللَّهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ ۖ وَعِندَهُ أُمُّ الْكِتَابِ ﴿٣٩﴾

محوه کوي الله هغه چې اراده وفرمايي (د محوه کولو يې) او ثابتوي (هر هغه چې اراده وفرمايي د اثبات يې)، او په نزد د الله اصل د هر کتاب (چې لوح محفوظ) دی (چې هر شی په کې ليکلی شوي دي).

تفسير: يعنې سم له خپل حکمت سره د هر حکم د منسوخيت ـ يا د هر حکم د دوام اراده چې وفرمايي ـ او هر قوم د محوه کولو ، او د هغو په ځای د بل قوم د درولو ـ او د هغو اسبابو د تاثير د بدلولو، او د هغو وسائلو د تاثير د پرېښوولو ـ او سره د موجوديت د شرائطو د يوې وعدې اظهار او بې د شرائطو له موجوديت د بلې وعدې د نه ظاهرولو، الغرض هر قسم تبديل او تغيير، محوه او اثبات، نسخ او احکام د ده په لاس کې دی، د قضاء او قدر تمام دفاتر د ده په قبضه کې دي، او د ګردو تفصيلاتو او دفاترو اساس ته ښايي چې «أم الكتاب» ووايه شي.

وَإِن مَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَعَلَيْنَا الْحِسَابُ ﴿٤٠﴾

او که وښيو مونږ خامخا تاته (په حيات ستا کې) ځينې له هغه (عذابه) چې وعده يې کوو مونږ له دغو (کفّارو) سره (د دې عذاب) يا که وفات کړو مونږ تا (په خوا له دې تعذيبه د کفارو؛ نو پر تا څه ملامتيا نشته)؛ نو بېشکه همدا خبره ده چې په تا رسونه د پيغامونو (او بيانول د احکامو) دي، او پر مونږ دی حساب (او جزا ورکول د دوی).

تفسير: يعنې هغه وعده چې مونږ له دوی سره کړې ده؛ مونږ اختيار لرو چې له هغو ځينې اوس ستاسې په ژوندون پوره کړو، يا ستاسې له وفاته يې وروسته ظاهره کړو، نه ښايي چې تاسې د هغو د ظهور په فکر کې ولوېږئ، او نه هغو خلقو

لره لازم دي چې د دغه تأخير او امهال له ليدلو څخه ښفکره شي، د الله تعالی په علم کې د هر شي لپاره مناسب وخت مقرر دی، چې د هغو په رسېدلو سره هغه خامخا ښکاريږي، تاسې د خپل تبليغ فريضه اداء کړئ، د مکذبينو حساب مونږ پخپله ګورو او خلاصوو يې.

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ وَاللَّهُ يَحْكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكْمِهِ ۚ وَهُوَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٤١﴾

آيا نه ګوري (کفّار) چې په تحقيق راځو مونږ ځمکې (د دوی) ته چې کموو يې (فتحه کوو يې مسلمانانو ته) له څنډو (غاړو) د دې، او الله حکم کوي (په هر څه چې اراده وفرمايي)، نشته هيڅوک رد کوونکی لپاره د حکم د الله، او الله ډېر ژر حساب کوونکی دی.

تفسير: يعنې د مکې معظمې د ځمکې په شاوخوا کې د اسلام اثر خوريږي، او د کفر رسم او رواج ورځ په ورځ کميږي، د لويو لويو قبائلو او اشخاصو په زړونو کې د اسلام نور او تأثير ځای نيسي، د (اوس) او (خزرج) زړونه د حق او صداقت په مقابل کې مفتوح شوي دي، همداسې مونږ ورو ورو د کفر حکومت کمزوروو، او قوت او قدرت يې کموو، نو آيا دغه روښانه آثار دغو مکذبينو ته دا نه ورښيي چې د پاک الله فيصله د دوی د مستقبل په متعلق شوې ده، يو عقلمن سړی پر دې ښه پوهيږي په هغه تګ چې نن اسلام پرې پر مخ ځي، د هغه مخه هيڅ يو طاقت نشي نيولی، لهذا د خاتمې خير او ښېګڼه په همدې کې ده چې هغه راتلونکې شي، راغلې او واقعي وګڼی شي.

وَقَدْ مَكَرَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَلِلَّهِ الْمَكْرُ جَمِيعًا ۖ يَعْلَمُ مَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ ۗ وَسَيَعْلَمُ الْكُفَّارُ لِمَنْ عُقْبَى الدَّارِ ﴿٤٢﴾

او په تحقيق مکر فريب کړی وو (له خپلو انبياوو سره) هغو (کفارو) چې پخوا له دغو څخه وو (لکه چې دغه کفّار مکر کوي له تا سره ای محمده !)؛ نو خاص الله لره دي چلونه ټول، معلوم دی الله ته هر هغه (ښه او بد) چې کوي يې هر نفس، او ژر به پوه شي کفّار چې چاته به وي (ښه) خاتمه د دار (د آخرت).

تفسير: يعنې که د پاک الله اراده نه وي؛ نو ګرد مکر او فريب بې اثره پاتې کيږي، يا دا چې الله تعالی د دوی هغه ګرد فريب او مکر ماتوي، «مکر» په اصل کې خُفيه تدبير ته وايي، که د بدی لپاره وکړی شي بد دی، او که د ښو چارو او د بدی د لرې کولو لپاره وکړ شي؛ ښه دی، يعنې دوی په پټه پټه سره ناپاکه چلونه وکړل، ليکن د الله تعالی چل پر ګردو باندې غالب شو، او سرچپه (الټه) هغه ګرد چلونه پر دوی باندې غورځوي، ﴿وَلَا يَحِيقُ الْمَكْرُ السَّيِّئُ إِلَّا بِأَهْلِهِ﴾ (۲۲ جزء د فاطر سورت (۴۳) آيت (۵) رکوع).

وَيَقُولُ الَّذِينَ كَفَرُوا لَسْتَ مُرْسَلًا ۚ قُلْ كَفَىٰ بِاللَّهِ شَهِيدًا بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ وَمَنْ عِندَهُ عِلْمُ الْكِتَابِ ﴿٤٣﴾

او وايي هغه کسان چې کافران دي (تاته ای محمده !) چې نه يې ته لېږلی شوی (د الله له لوري په نبوّت سره)، ووايه (ای محمده ! دوی ته) بس کافي دی الله شاهد په منځ ځما او ستاسې او بل (کافي دی په شاهدۍ کې) هغه څوک چې په نزد د ده علم د کتاب دی.

تفسير: يعنې ستاسې له تکذيب څخه هيڅ نه کيږي، ځکه چې الله قدوس ځما د صداقت لويې لويې نښې درښيي، قرآن کريم چې د الله تعالی کلام دی لکه چې پخپل کلام الله توب باندې شهادت ورکوي؛ همداسې ځما د نبوّت پر حقانيت هم شاهد دی، که سترګې وغړوئ؛ نو په سختو ناموافقو حالاتو کې د صداقت په داسې ښه شان سره خوربدل، او د

دښمنانو تر زړونو پورې دغه خپل اثر غورځول، او د دروغو مغلوب او مقهور کېدل، او په یوه لوري سره غونډېدل او د اسلام نور موفقیت د الله تعالی له جانبه څما پر حقانیت باندې ښکاره دلیل او شهادت دی.

﴿وَمَنۡ عِندَهُۥ عِلۡمُ ٱلۡكِتَٰبِ﴾ - «او بل کافي دی په شاهدي کې هغه څوك چې په نزد د ده دی علم د کتاب»، یعنې هغه څوك چې د قرآن له علمه خبردار او د ده پر حقانیت مطلع دي؛ دی هم د دې شاهد دی چې ما له خپله ځانه څه دروغ نه دي جوړ کړي، لکه اهل د بلاغت او فصاحت له مؤمنانو، او هم هغه کسان لکه عبد الله بن سلام او ملګري د دوی، چې له پخوانیو سماویه وو کتابونو -او د هغو له وړاندوینو څخه اطلاع لري؛ د هغو زړونه ګواهي ورکوي چې محمد صلی الله علیه وسلم له همغو وړاندوینو سره سم تشریف راوړی دی، چې په سلهاوو کلونو پخوا له دې نه موسی او عیسی علیهما السلام فرمایلې وې.

تمت سورة الرعد بعون الله وحسن توفیقه.



# سُورَةُ إِبْرَاهِيمَ

«د ابراهیم سورت مکي دی، پرته له (۲۸) او (۲۹) آیتونو څخه چې مدني دي، (۵۲) آیته او (۷) رکوع لري، په تلاوت کې (۱۴) او په نزول کې (۷۲) سورت دی، وروسته د نوح له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓرٰ كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِ رَبِّهِمْ اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ ﴿۱﴾
اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَوَيْلٌ لِّلْكٰفِرِيْنَ مِنْ عَذَابٍ شَدِيْدِ ﴿۲﴾ الَّذِيْنَ يَسْتَحِبُّوْنَ الْحَيٰوةَ
الدُّنْيَا عَلَى الْاٰخِرَةِ وَيَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَيَبْغُوْنَهَا عِوَجًا اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ بَعِيْدٍ ﴿۳﴾

(دا قرآن) یو کتاب دی چې نازل کړی (لیږلی) دی مونږ تا ته لپاره د دې چې راوباسې خلق (په دې کتاب سره) له تیارو د کفر څخه رڼا د ایمان ته، په اذن د رب د دوی (طرف د) لارې د هغه الله ته چې ښه غالب دی (په انفاذ د احکامو) ښه تل ثنا ویلی شوی دی (په محامدو). هغه الله چې خاص ده ته دي هر څه چې په اسمانونو کې دي (له علویاتو) او هر هغه چې په ځمکه کې دي (له سُفلیاتو سره د اسمانونو او د ځمکو)، او خرابي (عذاب، مصیبت، اور) ده لپاره د کفارو له عذابه سخته. هغه کفار چې خوښوي (او غوره کوي له ډېره حماقته) ژوندون لږ خسیس پر آخرت او اړوي (خلق) له لارې د الله (چې دین او متابعت د رسول الله دی)، او لټوي دوی دغې لارې ته کوږوالی؛ دغه کسان په ګمراهۍ لرې کې دي (له حقه).

تفسیر: یعنې د دې کتاب د شان عظمت له دغې خبرې څخه ښایي وکړ شي؛ چې مونږ د هغه نازل کوونکي یو، او ستاسې په شان یو رفیع الشان شخصیت د هغه حامل او راوړونکی دی، او مقصد یې هم دومره اعلی او ارفع دی؛ چې له هغه څخه بل لوړ او لوی مقصد نشي جوړېدی، او هغه دا دی چې د الله تعالی په حکم او توفیق د تمامې دنیا خلق اعم له دې نه چې عرب وي یا عجم ـ تور وي که سپین ـ مزدور وي که په شتو معمور ـ پاچا وي که رعایا؛ ګرد سره د جهالت له لوګیو، دوړو، او خاورو څخه راویستل، او د ایمان او ایقان په رڼا کې د درولو کوښښ کولی شي.

﴿اِلٰى صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ﴾ یعنې د صحیح معرفت په رڼا کې پر هغې لارې لاړ شئ چې د زبردست او غالب او په ستایلو شویو صفاتو سره مطلق شهنشاه او مالک الملوک الله له جانبه ښوولې شوې ده، او د ده د رضاء تر مقام پورې رسوونکې ده.

وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِهٖ لِيُبَيِّنَ لَهُمْ فَيُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ
وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۴﴾

او نه دی لیږلی مونږ هیڅ رسول مګر خو په ژبه د قوم د ده لپاره د دې چې بیان کړي دوی ته (امر او نهي د الله)، نو ګمراه کوي الله هر هغه څوک چې اراده وفرمايي (د ګمراهۍ یې)، او هدایت کوي هر هغه چاته چې اراده وفرمايي (دهدایت یې)، او همدی ښه قوي غالب دی (په انفاذ د احکامو)، ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعنې همغسې چې مونږ تاسې ته د خلقو د هدايت لپاره دغه عظيم الشان كتاب عطا فرمايلى دى؛ پخوا له دې نه هم په هره زمانه كې مونږ د هدايت وسائل خلقو ته ورلېږلي او رسولي دي، كله چې له طبيعي ترتيب سره موافق د هر نبي ړومبنى مخاطب د هغه قوم خلق وي چې په دوى كې هغه نبي مبعوثيږي؛ نو ځكه د هغه قوم په ژبه وحي لېږله كيږي، څو د الله تعالى د احكامو په پوهولو كې پوره سهولت او اساني وي.

د نبي كريم عليه السلام په امت دعوت كې اګر كه د جهان ګرد انسانان او پېريان شامل دي؛ خو بيا هم په هغه قوم كې چې دوى مبعوث شوي دي؛ د هغوى قوم ژبه عربي وه، او د طبيعي ترتيب په موافق د هدايت د شيوع همدغه يو صورت مقدر وو، چې د دوى ړومبني مخاطبين او مقدم زده كوونكي په داسې سهولت او ښه والي سره په قرآني تعليماتو او حقائقو باندې وپوهيږي؛ چې ښه يې په ياد او محفوظ كړي، څو د دوى په ذريعه د عالم تمام اقوام او راتلونكي نسلونه درجه په درجه په قرآني رنګ سره رنګ كړى شي، لكه چې همداسې هم وشو، عربو د خپل نبي په صحبت پخپل قومي ژبې كې چې له هغه سره دوى بېحده مينه، محبت او صميميت درلوده؛ پر قرآني علومو پوره علم او پوهه حاصله كړه، بيا دوى په مشرق او مغرب كې خواره شول، او په روم او فارس كې د «كلمة الله» د اعلاء لپاره خواره شول.

په دغه وخت كې الله تعالى په خپل قدرت په عجمي اقوامو كې داسې زبردست جوش او د الله تعالى د كلام د معرفت داعيه او په عربي ژبه كې د پوهې او مهارت حاصلولو داسې شوق پيدا فرمايلى وو؛ چې له لږ مدت څخه وروسته دوى د قرآني علومو په شرح او تبيين كې له خپلو معاصرو عربو څخه ډېر پرمخ لاړل.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا أَنْ أَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ وَذَكِّرْهُمْ بِأَيَّامِ اللَّهِ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ ﴿٥﴾

او خامخا په تحقيق لېږلى وو مونږ موسى په ښكاره معجزو ځمونږ چې راوباسه قوم خپل له تيارو (د جهالت او ضلالت) رڼا (د علم او يقين) ته، او ور ياد كړه (پند وركړه دوى ته) په (هغو سختو) ورځو (حوادثو او غورو نعمتونو) د الله، بېشكه په دغو (يادولو د سختيو او نعمتونو) كې خامخا دلائل د قدرت دي لپاره د هر ډېر صبر كوونكي (په زحمتونو) ډېر شكر كوونكي (په نعمتونو).

تفسير: يعنې د هغو معجزاتو له وركولو سره مونږ موسى عليه السلام لېږلى وو چې د (تسعه وو آيتونو) په نامه سره مشهورې دي، يا به د (تورات) آيات مراد وي.

«او ورياد كړه او پند وركړه دوى ته په هغو سختو ورځو د الله»، يعنې د هغو ورځو واقعات يې ورپه ياد كړه كله چې پر دوى باندې د شدائدو او مصائبو غرونه ولوېدل، بيا نو الله تعالى دوى ته له هغه څخه نجات وركړ، او خپله مهرباني يې پرې وفرمايله، ځكه چې د دواړو قسمو حالاتو له اورېدلو څخه صابرو او شاكرو بندګانو ته عبرت حاصليږي.

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ أَنْجَاكُمْ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَسُومُونَكُمْ سُوءَ الْعَذَابِ وَيُذَبِّحُونَ أَبْنَاءَكُمْ وَيَسْتَحْيُونَ نِسَاءَكُمْ ۚ وَفِي ذَٰلِكُمْ بَلَاءٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَظِيمٌ ﴿٦﴾

او (ياد كړه) هغه وخت چې وويل موسى قوم خپل ته: ياد كړئ نعمت د الله (چې احسان يې كړى دى) پر تاسې كله چې يې خلاص كړئ تاسې له تابعانو د فرعون څخه، چې رسولو به يې تاسې ته بد سخت عذاب او ذبح كول به يې واړه ځامن ستاسې، او ژوندي به يې پرېښودې لپاره د خدمت لوڼې ښځې ستاسې، او په دې (حلالولو يا خلاصولو يا ټولو كې نصرت مصيبت يا نعمت يا) ابتلا وه له جانبه د رب ستاسې ډېره لويه.

تفسیر: مثلاً له تاسې څخه يې مريان جوړ كړي وو، او پر تاسې يې سخت سخت بيګارونه اجرا كول، او ذبح كول وژل به يې واړه ځامن ستاسې، او ژوندي به يې پرېښودې لپاره د خدمت لونې ښځې ستاسې، او په دې حلالولو يا خلاصولو يا ټولو كې مدد مصيبت نعمت يا ابتلاء وه له جانبه د رب ستاسې ډېره لويه؛ چې تاسې يې د مريتوب له ذلته وويستلئ، او د خپلواكۍ ازادۍ له دولت څخه يې مستفيد كړئ.

د «بلا» اصلي معنی ازموينه ده، په زحمت او راحت په دواړو حالتونو كې د بندګانو ازموينه په صبر او شكر كې ده، ﴿وَنَبۡلُوكُم بِٱلشَّرِّ وَٱلۡخَيۡرِ فِتۡنَةٗۖ﴾ (۱۷ جزء د الأنبيا (۳۵) آيت (۳) ركوع.

وَإِذۡ تَأَذَّنَ رَبُّكُمۡ لَئِن شَكَرۡتُمۡ لَأَزِيدَنَّكُمۡۖ وَلَئِن كَفَرۡتُمۡ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٞ ۝٧

او ياد كړه هغه وخت چې خبر دركړ تاسې ته رب ستاسې په دې چې قسم دی كه چېرې شكر وويستلو تاسې (په تېرو نعمتونو احسانونو ځما)؛ نو خامخا زيات به كړم تاسې ته نعمت، او قسم دی كه بې ښېقدري ناشكري وكړه تاسې (د نعمتونو احسانونو ځما)؛ نو بېشكه عذاب ځما خامخا ډېر سخت دی.

تفسير: دا د موسى عليه السلام مقوله ده، يعنې ای بني اسرائيلو ! هغه وخت هم په ياد ولرئ چې ستاسې رب اعلان وفرمايه: «كه ځما احسان مو ومنلو، او په ژبه او په زړه مو ځما د نعمتونو شكر ادا كړ؛ نو خامخا روحاني او جسماني - اخروي او دنيوي هر قسم نعمتونه به هم ستاسې په برخه كړم، او قسم دی كه ښېقدري او ناشكري وكړئ تاسې د نعمت ځما؛ نو بېشكه عذاب ځما خامخا ډېر سخت دی»، يعنې ای بني اسرائيلو ! د كفران په صورت دغه موجوده نعمت هم در څخه سلب كولی شي، او د ناشكرۍ مزيده سزا به بېله دركړل شي.

وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِن تَكۡفُرُوٓاْ أَنتُمۡ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ جَمِيعٗا فَإِنَّ ٱللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝٨

او وويل موسى (ای قومه ځما !) كه كافران (منكران) شئ (ښېقدري وكړئ) تاسې او هر هغه شوك چې په ځمكه كې دي (له انسانانو او پيريانو) ټول؛ نو بېشكه الله خامخا غني دی (بې پروا له هر څيز او له هر چا) تل ښه ستايلی شوی (ثنا ويلی شوی).

تفسير: يعنې ای بني اسرائيلو ! د كفران ضرر به هم تاسې ته رسيږي، او د پاك الله هيڅ شی نه كميږي، او هغه ستاسې شكر كولو ته له سره حاجت نه لري، كه څوك يې شكر اداء كړي كه يې اداء نه كړي؛ په هر حال د ده حميدی او محمودی ته هيڅ تنقيص نه واقع كيږي، «صحيح مسلم شريف» كې يو حديث قدسي نقل كړی دی چې حاصل يې داسې دی: «ای ځما بندګانو ! كه تاسې ګرد پخواني او وروستني جن او انس ټول د يوه پرهېزګار سړي په نمونه شئ؛ نو له هغه څخه هيڅ ځما په مملكت كې څه نه زياتيږي، او كه تاسې پخواني او وروستني جن او انس سره ټول يو ځای شئ، او په فرض محال د يوه بدترين انسان په شان شئ (العياذ بالله)؛ نو له هغه څخه د يوې ذرې په اندازې ځما په مملكت كې هيڅ نقصان نه واقع كيږي.

أَلَمۡ يَأۡتِكُمۡ نَبَؤُاْ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِكُمۡ قَوۡمِ نُوحٖ وَعَادٖ وَثَمُودَ وَٱلَّذِينَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ
لَا يَعۡلَمُهُمۡ إِلَّا ٱللَّهُۚ جَآءَتۡهُمۡ رُسُلُهُم بِٱلۡبَيِّنَٰتِ فَرَدُّوٓاْ أَيۡدِيَهُمۡ فِيٓ أَفۡوَٰهِهِمۡ وَقَالُوٓاْ إِنَّا
كَفَرۡنَا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم بِهِۦ وَإِنَّا لَفِي شَكّٖ مِّمَّا تَدۡعُونَنَآ إِلَيۡهِ مُرِيبٖ ۝٩ قَالَتۡ رُسُلُهُمۡ أَفِي ٱللَّهِ شَكّٞ
فَاطِرِ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۖ يَدۡعُوكُمۡ لِيَغۡفِرَ لَكُم مِّن ذُنُوبِكُمۡ وَيُؤَخِّرَكُمۡ إِلَىٰٓ أَجَلٖ مُّسَمّٗىۚ

﴿قَالُوٓا۟ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا تُرِيدُونَ أَن تَصُدُّونَا عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ ءَابَآؤُنَا فَأْتُونَا بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ۝١٠﴾

آيا نه دی راغلی تاسې ته خبر د هغو کسانو چې (تېر شوي دي) پخوا له تاسې نه؛ چې قوم د نوح او عاد (چې قوم د هود دی) او ثمود (چې قوم د صالح دی) او هغه کسان چې وو پس له دوی څخه، چې نه دي خبر پر دوی (هيڅوک) مګر يو الله، چې راوړي وو دوی ته رسولانو د دوی ښکاره دلائل؛ نو رد کړل (وګرځول دغو کفارو) لاسونه خپل په خولو خپلو (يا په خولو د انبياوو کې چې ونه غږيږي) او وويل دوی چې: بېشکه مونږ کافران شوي يو په هغه چې لېږلي شوي يئ تاسې په هغه سره، او بېشکه مونږ خامخا په شبهه شک کې يو له هغه (توحيد) نه چې بولئ تاسې مونږ هغه ته (په داسې شک) چې واقع کوونکی دی (مونږ لره په اضطراب او خلجان کې). وويل رسولانو د دوی: آيا په (وجود د) الله کې شبهه شک دی (هسې الله چې) پيدا کوونکی د اسمانونو او د ځمکې دی، بولي تاسې (لره الله په ژبه ځمونږ ايمان ته) لپاره د دې چې وبخښي تاسې ته بعضې له ګناهونو ستاسې (چې حقوق الله دي)، او چې مهلت درکړي تاسې ته (له عذابه) تر وخته معيّنه پورې (چې وخت د نزعې دی)، وويل (کفارو) چې: نه يئ تاسې مګر آدميان پشان ځمونږ (نو ولې به تاسې انبياء ګڼو) اراده لرئ تاسې د دې چې منع کړئ واړوئ مونږ (په دعوی د نبوت سره) له هغو شيانو څخه چې وو چې عبادت به کولو پلرونو ځمونږ، نو راوړئ مونږ ته کوم برهان ښکاره (حجّت واضح په صحت د دې دعوی او استحقاق د فضل خپل).

تفسير: دا د موسی عليه السلام د کلام تتمه ده ـ يا هغه يې پرېښې ـ حق تعالی دغه محمدي امت ته خطاب فرمايي، په هر حال په دې کې يې ښوولي دي چې هغه بې شماره اقوام چې پخوا له دې نه تېر شوي دي، د هغوی تفصيلي اطلاع او احوال بې له الله تعالی څخه هيچا ته معلوم نه دي، البته هغه څو قومونه چې د عربو په نزد ډېر مشهور وو؛ د هغو نومونه يې واخيستل، او بقيه يې په ﴿وَالَّذِينَ مِنۢ بَعْدِهِمْ﴾ کې درج کړي، تنبيه فرمايي چې: د دغو اقوامو څه حال او حشر شوی دی؟ آيا د هغو احوال تاسې ته نه دي رسيدلي؟ د تعجّب ځای دی چې پخوا له دې نه دومره اقوام سپېره او تباه شوي دي، او د دوی له حال څخه تر اوسه پورې تاسې ته عبرت نه دی حاصل شوی.

تنبيه: ابن عباس رضي الله عنه ﴿لَا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا ٱللَّهُ﴾ ولوست او ويې ويل: «کذب النسابون» يعني د انسابو د پوره معرفت دعوی کوونکي دروغجنان دي، عروه بن الزبير فرمايي چې: مونږ هيڅوک داسې نه دي موندلي چې له معدّ بن عدنان څخه پورته په حقيقي طور د نسب حال او احوال راوښيي، والله أعلم.

﴿جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ﴾ الآيه ـ «چې راوړي وو دوی ته رسولانو د دوی ښکاره دلائل د قدرت؛ نو رد کړل وګرځول دغو کفّارو لاسونه خپل په خولو خپلو، يا په خولو د انبياوو کې چې چپ شئ نور څه مه وايئ»، يعني کفّار له ډېره غيظه او غضبه خپلې ګوتې چيچې، په بل ځای کې يې فرمايلي دي: ﴿عَضُّوا۟ عَلَيْكُمُ ٱلْأَنَامِلَ﴾ يا د انبياوو د خبرو له اورېدلو څخه له نهايت تعجبه خپل لاسونه پر خوله ږدي، خپل لاسونه د خپلو خولو په لوري وړي او اشارې کوي چې بس دی چپ اوسئ ! يا ځمونږ له دې ژبې څخه ماسوا له دې ځوابه د بل کوم شي د اورېدلو توقع مه کوئ، چې وروسته له دې نه بيان راغی، يا د نبي الله د خبرو د اورېدلو په وخت کې خندل، او کله د خندا د مخې نيولو لامله (له وجې) پر خپلو خولو به يې خپل لاسونه کېښودل.

په هر حال هره معنی چې واخيسته شي، د ګردو (ټول) حاصل همدغه دی؛ چې دوی د الله تعالی د نعمت ناقدري وکړه، او دانبياوو عليهم السلام دعوت يې قبول نه کړ، بلکه له هغو سره يې په ډېرې بېقدری او سپين سترګی او ګستاخي سره معامله وکړه.

﴿أَفِي اللَّهِ شَكٌّ﴾ یعني د الله تعالی وُجود او وحدانیت خو داسې یو شی نه دی چې په هغه کې د شکّ او شبهې لږ ځای او ګنجایش وي، پخپله انساني فطرت د رب العزّت پر وجود شاهد دی، د علویّاتو او سفلیّاتو عجیب او غریب نظام شهادت ورکوي، چې د دغه مشین پرزې د وجود په قالب او سانچه کې اچوونکی او بیا یې جوړوونکی او په نهایت محکمې او منظمې طریقې سره چلوونکی قوت او قدرت ښایي چې ډېر قوي او نهایت زبردست وي، چې په کامل حکمت او اختیار سره د عالم مشین پخپل واک او قابو کې ساتي، نو ځکه خورا ډېرو لویو لویو مشرکانو ته په یو نه په بل رنګ د دغې خبرې له اعترافه چاره نشته، هغه لوی الله چې اسمانونه او ځمکې او نورې کړې یې پیدا کړې دي، هغه الله تعالی له ګردو وړوکو بتانو او معبودانو څخه په ډېره لوړه (اوچته) مرتبه کې دی.

د انبیاوو علیهم السلام تعلیم هم دغه دی کله چې د انساني فطرت د یوه علیم او حکیم او قادر او توانا منبع الکمالاتو الله تعالی د مجمع الصفاتو ذات پته او سراغ او نښه لګولې او پیدا کړې ده؛ نو بیا ولې د اوهامو او ظنونو په خټو او دلدلو کې خپل ځان غورځوئ او خښوئ؟ او دغه ساده فطرت او ښکاره دلیل څخه لویې قیصې او معمّی جوړوئ؟.

انساني ضمیر، او د بشریت وجدان شهادت اداء کوي؛ چې د یوه قادر مطلق او عالم الکل الله تعالی له موجودیت سره د کومې تیرې (ګټې) یا ونې یا انساني تصویر یا فلکي ستوري یا د بل کوم مخلوق په الوهیت کې شریکول د فطرت د غږ بندولو یا خرابولو سره مرادف دي، نو آیا د الله پاک په ذات او صفاتو کې معاذ الله د څه نقصان احساس شوی دی؛ چې د هغه تلافي د ده مخلوق د معبودانو په جمعیت سره کوي.

﴿قَالُوٓاْ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا﴾ یعني ښه ! د الله تعالی بحث پرېږدئ ! او د خپل ځان په نسبت ووایئ ! آیا تاسې د اسمان پرښته یئ؟ یا علاوه پر نوع البشر له نورو کومو نوعو څخه یئ؟ ! کله چې بل هیڅ شی نه یئ، او فقط ځمونږ په شان بنیادم یئ؛ نو بیا په څه ډول مونږ ستاسې پر دغو خبرو یقین وکړو، ستاسې غوښتنه به داسې وي چې مونږ خپل قدیمي مذهب څخه مخ واړوو او ستاسې تابعان شو؛ نو زړونه مو جمع کړئ چې دغه به له سره نه کیږي، که تاسې د خپل امتیاز ثابتول غواړئ، او په دغه مقصد کې خپله کامیابي او بری غواړئ؛ نو داسې کوم یو ښکاره سند او الهي فرمان راوښیئ چې د هغه په مقابل کې مونږ هرومرو خپلې غاړې کیږدو، او دغه کار هلته امکان لري چې تاسې ځمونږ له غوښتنې سره سم معجزې او ښکاره نښې راوښیئ.

قَالَتْ لَهُمْ رُسُلُهُمْ إِن نَّحْنُ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَمُنُّ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ ۖ وَمَا كَانَ لَنَآ أَن نَّأْتِيَكُم بِسُلْطَٰنٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾

وویل دوی ته رسولانو د دوی چې (هو !) نه یو مونږ مګر آدمیان یو په شان ستاسې، ولیکن الله احسان کوي (په ایمان او نبوّت سره) پر هر چا چې اراده وفرمایي (د احسان د هغوی) له بندګانو خپلو (لکه چې پر مونږ یې فرمایلی دی)، او نه ښایي مونږ ته (او نه توانیږو) دا چې راوړو مونږ تاسې ته کوم برهان (سند او معجزه) مګر په اذن (حکم) د الله سره، او خاص پر الله نو توکل دې وکړي مؤمنان.

تفسیر: یعني ستاسې دغه خبرې ګردې داسې دي چې نه مونږ پرښتې یو او نه بل کوم مخلوق، بلکه په نفس د بشریت کې مونږ ستاسې په شان یو، لیکن د بشر د نوعې په افرادو کې د احوالو او مدارجو په اعتبار آیا د ځمکې او د اسمان توپیر (فرق) او اعتبار نشته؟ آخر دا خو تاسې هم ګورئ چې الله تعالی د جسماني ـ دماغي ـ اخلاقي او معاشي حالاتو په اعتبار ځینو انسانانو ته پر ځینو نورو څومره فضیلت او عظمت وربخښلی دی، بیا که داسې وویلی شي چې پاک الله خپل ځینې بندګان د دوی د فطري قابلیت او اعلی ملکاتو په سبب د روحاني کمال او باطني قرب هغه لوړ مقام ته رسولي دي چې هغه ته د «نبوّت» یا «رسالت» منصب وایي؛ نو په دغه کې څه اشکال او استبعاد دی.

په هر حال د نبوّت له دعوی څخه دغه نه لازميږي چې د خپل ځان په نسبت د ماسوا البشر د بل کوم نوعيت دعوی کوونکي يو، هو! دومره قدر ثابتيږي چې الله تعالی له خپلو بندګانو څخه ځينو ته پر ځينو داسې خصوصي احسان فرمايي چې هغه په نورو کې نه وي (لکه نبوت ـ رسالت ـ ولايت ـ علميت ـ درايت ـ کفايت ـ اهليت).

پاتې شو ستاسې د غوښتنې پوره کول؛ نو دغه شی د الله تعالی په اختيار کې دی، څمونږ په قبضه او واک (اختيار) کې نشته، او نه څمونږ تصديق په دغه پورې عقلاً مربوط دی، پاک الله سم له خپل حکمت سره د هر هغه سند او معجزې اراده چې وفرمايي تاسو ته به يې درښيي.

وَمَا لَنَآ أَلَّا نَتَوَكَّلَ عَلَى ٱللَّهِ وَقَدْ هَدَىٰنَا سُبُلَنَا ۚ وَلَنَصْبِرَنَّ عَلَىٰ مَآ ءَاذَيْتُمُونَا ۚ وَعَلَى ٱللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ ٱلْمُتَوَكِّلُونَ ﴿١٢﴾

او څه عذر دی مونږ ته په دې کې چې توکل به نه کوو پر الله، حال دا چې ښوولي يې دي مونږ ته لارې (د دين) څمونږ، او قسم دی چې صبر به وکړو خامخا په ضرر رسولو ستاسې مونږ لره، او خاص پر الله نو تل دې توکل وکړي متوکلان.

تفسير: يعنې حق تعالی مونږ ته د توحيد جام راڅښولی دی، او د حقيقي برې او کاميابي لاره يې راښوولې ده، نو بيا څرنګه ممکن دي چې مونږ به پرې توکل او اعتماد نه کوو، تاسې هومره ضرر او ايذاء چې راورسوئ؛ د پاک الله په فضل سره څمونږ په توکل کې هيڅ فرق نه لويږي، د متوکلينو دغه کار نه دی چې د سختيو په ليدلو سره د توکل او استقامت له لارې څخه واوړي يا بې هيلې شي.

وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُم مِّنْ أَرْضِنَآ أَوْ لَتَعُودُنَّ فِى مِلَّتِنَا ۖ فَأَوْحَىٰٓ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ ٱلظَّـٰلِمِينَ ﴿١٣﴾ وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ ٱلْأَرْضَ مِنۢ بَعْدِهِمْ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِى وَخَافَ وَعِيدِ ﴿١٤﴾

او وويل هغو کسانو چې کافران شوي وو رسولانو خپلو ته چې خامخا وبه باسو مونږ تاسې هرومرو له څمکې خپلې يا به خامخا وګرځئ تاسې هرومرو په دين څمونږ کې، پس وحي وکړه دوی ته رب د دوی چې هرومرو هلاک به کړو مونږ ظالمان. او خامخا به واوسوو مونږ تاسې په څمکه د دوی کې وروسته (د هلاک) د دوی، دغه (اهلاک او اسکان حق دی) لپاره د هغه چا چې ويريږي له درېدلو په مخ څما کې او ويريږي له وعدې (د عذاب څما).

تفسير: يعنې اوس خپل د توکل او استقامت خبرې پرېږدئ! او خپله زياته لويي او مشرتيا مه ښکاره کوئ! بس او بس له دوو خبرو څخه يوه خبره ضرور څانونو ته غوره کړئ! يا تاسې له بعثته څخه پخوا په شان پټه خوله او قرار له مونږ سره ګډ او مخلوط اوسئ، او هغه کسان مو چې پخوا له دې نه له مونږ څنې بې لارې کړي دي؛ هغوی دې بېرته څمونږ په همدغه پخواني دين کې راشي !، که نه تاسې ټول څمونږ له ملکه د باندې لاړ شئ! او مونږ مو له دې وطنه نورو ملکونو ته شړو.

پس وحيه وکړه دوی ته رب د دوی داسې چې هرومرو هلاک به کړو مونږ ظالمان، يعنې تاسې به څنګه دوی له دې ملکه وباسئ، مونږ به همدغه ظالمان د تل لپاره داسې فنا کړو؛ چې بيا له سره بېرته نشي راتلی، او د دوی په ځای کې به تاسې او ستاسې نور مخلص وفاداران ودانوو.

وګورئ چې د مکې معظمې کفّارو نبي کريم صلی الله عليه وسلم او نور مسلمانان له هغه ځايه وويستل، چې همدغه اخراج بالآخر د دوی د اخراج سبب او وسيله وګرځېده، او هلته د اسلام او د مسلمانانو دائمي تسلط قائم او د

کفر او کفارو هیڅ یو اثر او ننبه نشوه پاتې، او همدغه یې داسې وفرمایله چې: او خامخا به اوسوو مونږ تاسې په ځمکه د دوی کې وروسته له اهلاکه د دوی.

وَاسْتَفْتَحُوا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿۱۵﴾ مِّن وَرَائِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ ﴿۱۶﴾ يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ وَيَأْتِيهِ الْمَوْتُ مِن كُلِّ مَكَانٍ وَمَا هُوَ بِمَيِّتٍ ۖ وَمِن وَرَائِهِ عَذَابٌ غَلِيظٌ ﴿۱۷﴾

او فیصله (فتح او نصرت) وغوښت (انبیاوو؛ نو منصور او مأمون شول سره له مؤمنانو) او نامراده زیانکاره نااميده شو هر یو متکبر سرکښ (ضدي عناد کوونکی له حق سره). چې وړاندې د ده دوزخ دی (پس له مرګه او په کې سوځي) او ورڅښولی به شي له اوبو (چې زوې وینې سره ګډې وي، او د دوزخیانو له ګېډو بهیږي). چې غړپ غړپ به یې (په تکلیف سره) څښي او نه به وي نژدې چې تېر کړي هغه (زوې په اسانۍ سره له ډېر تریخوالي او بدبويۍ) او رابه شي ده ته (سختي د) مرګ له هر طرف (او له هر ځايه) حال دا چې نه به وي دی مړ کېدونکی (چې په ارام شي) او له شا او په مخ د ده کې به عذاب ډېر سخت وي.

تفسیر: یعني انبیاوو له الله تعالی څخه مدد وغوښت، او د فیصلې طالبان شول، لکه چې نوح علیه السلام ویلي وو: ﴿فَافْتَحْ بَيْنِي وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَنَجِّنِي﴾ او لوط علیه السلام وویل ﴿رَبِّ نَجِّنِي وَأَهْلِي مِمَّا يَعْمَلُونَ﴾ او شعیب علیه السلام عرض کړی وو ﴿رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ﴾ او موسی علیه السلام دعاء فرمایلې وه: ﴿رَبَّنَا إِنَّكَ آتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُ﴾ الآیه ـ او کفارو کله چې ولیدل چې له دومره طویل مدت راهیسې مونږ له عذابه وېرول کېږو؛ لیکن د هغه هیڅ یوه ننبه او آثار نه څرګندیږي (ښکاره کیږي) نو په تمسخر او استهزاء سره یې په داسې ویناوو سره خوله وپرانیستله ﴿وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ (۲۳ جزء د ص سورت (۱۶) آیت ۲ رکوع) او ﴿وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾ (۹ جزء ۳۲ آیت د الأنفال سورت ۲ رکوع)، دغه خو د قریشو مقولې وې.

﴿مِّن وَرَائِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَىٰ مِن مَّاءٍ صَدِيدٍ﴾ یعني دغه خو د دې دنیا عذاب وو، وروسته له دې د دوزخ مدهشه او موحشه منظره ور په مخه ده، چې دوی په کې غورځول کیږي او سوځي چې د تږې کېدلو په شدت کې زوې یا د زوو په شان اوبه پر دغو کفّارو وڅښول شي.

﴿يَتَجَرَّعُهُ وَلَا يَكَادُ يُسِيغُهُ﴾ یعني پخپلې خوښې سره یې کله څښلی شي، په حدیث کې دي چې پرښتې یې د اوسپنې په ګرزونو سره په سر وهي او په زوره یې پرې څښي، او په خوله کې یې ورتویوي، څه مهال (وخت) چې دوی یې خپلې خولې ته ورنژدې کوي؛ نو د هغه د حرارت له شدّته د دوی د دماغو او د ماغزو تر پوټکي پورې هم ببل شي او لاندې ځوړند شي، کله چې هغه د دوی خولې ته ورسیږي؛ نو د دوی له ستوني (حلق) څخه تیریږي او هلته بند پاتې کیږي، په ډېر مصیبت او ربړ (تکلیف) سره یې یو یو ګوټ ـ یو یو غړپ، له ستوني (حلق) څخه تیروي، کله چې هغه د دوی نس کې لویږي؛ نو سم له لاسه د دوی کلمې ټوټې ټوټې غوځې شي، او د باندې تږې لویږي: ﴿وَسُقُوا مَاءً حَمِيمًا فَقَطَّعَ أَمْعَاءَهُمْ﴾ (۲۶ جزء د محمد سورت (۱۵) آیت (۲) رکوع)، ﴿وَإِن يَسْتَغِيثُوا يُغَاثُوا بِمَاءٍ كَالْمُهْلِ يَشْوِي الْوُجُوهَ﴾ (۱۵ جزء د الکهف سورت (۲۹) آیت (۴) رکوع) أعاذنا الله منها وسائر المؤمنین.

مَّثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ ۖ أَعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ ۖ لَّا يَقْدِرُونَ مِمَّا كَسَبُوا عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ ﴿۱۸﴾

مثال (حال ـ صفت) د هغو کسانو چې کافران شوي دي په رب خپل باندې؛ عملونه د دوی په شان (د ډېرې د) ایرې دي، چې سخت را الوځي پرې باد په هغه ورځ چې سخت او ښوروونکی

وي باد يې، نه به قادرېږي دوی د هغو عملونو چې کړي دي دوی په هيڅ شي، دا (ګمان د نېکۍ د دوی) همدغه ګمراهي ده لرې (له حقه).

تفسير: ځينو کفّارو ته به داسې خيال پيدا کېده چې مونږ خو په دنيا کې ډېر ښه ښه کارونه د صدقاتو او خيراتونو په سلسله کړي دي، ځمونږ ښه اخلاق په خلقو کې مشهور دي، له ډېرو خلقو سره مو په مصيبت او تکليف کې مرستې (مدد) او کومکونه کړي دي، او په يو نه يو صورت سره مو د الله تعالى عبادت هم کړی دی، نو آيا دغه ګرد کړي او په نورو کولي او راکړه او ورکړه مو هلته په کار نه راځي؟.

د هغه ځواب يې په دغه تمثيل سره ورکړ، يعنې هر هغه څوک چې په پاک الله صحيح ايمان نه لري، او يواځې د فرضي او وهمي معبودانو عبادت کوي؛ د هغه ګرد اعمال محض يو بې روحه او بې وزنه شي ته ورته دی، او هغه به په محشر کې داسې الوزي او له منځه ورک کيږي؛ لکه چې د لوی باد او سيلۍ په وخت کې د ايرو بخرکي الوځي، نو هلته به کفّار د نېک عمل څخه بيخي تش لاس وي، حال دا چې داسې يوه موقع به وي چې هلته د نېکو عملونه ضرورت له هر شي څخه زيات وي، الله اکبر ! دغه به څرنګه د حسرت او افسوس وخت وي.

اَلَمۡ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ بِالۡحَقِّ ؕ اِنۡ يَّشَاۡ يُذۡهِبۡكُمۡ وَيَاۡتِ بِخَلۡقٍ جَدِيۡدٍ ۙ﴿۱۹﴾ وَّمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيۡزٍ ﴿۲۰﴾

آيا نهويني (نه پوهيږې ای ليدونکيه !) چې بېشکه الله پيدا کړي دي اسمانونه او ځمکه په حقه سره (لکه چې اراده يې وه)، که اراده وفرمايي (الله د هلاکولو ستاسې)؛ نو بو به ځي تاسې (په مړينه سره) او رابه ولي نور خلق نوي (يعنې پيدا به يې کړي). او نه دی دغه (اهلاک ستاسې او پيدا کول د نـورو) په الله بانـدې سخت او مشکل (بلکه آسان دي).

تفسير: يعنې ښايي؛ کفارو ته داسې خيال پيدا شي، کله چې مونږ په خاورو کې سره ګډ او خاوره شو، نو بيا به بل ژوندون څرنګه وي؟ د قيامت او عذاب او ثواب خبرې ګردې (ټولې) افسانې دي، نو د دغه خيال په ترديد کې دا ورښيي؛ هغه الله ته چې اسمان او ځمکه يې پخپل کامل قدرت او حکمت سره پيدا کړي دي، ستاسې بيا ژوندي کول - يا د بل کوم مخلوق درول ودانول ستاسې په ځای کې هيڅ سخت او مشکل نه دي، که د اسمان او ځمکې د محکم نظام له ليدلو څخه دغه يقين در حاصليږي چې د هغو پيدا کوونکی او قائم ساتونکی کوم داسې ذات شته چې صانع او حکيم دی لکه چې د «بالحق» په لفظ سره يې تنبيه فرمايلې ده.

نو څرنګه ويلی شئ چې هغه به أشرف المخلوقات (انسان) محض يو بې نتيجې شی پيدا کړی وي؟ او د ده د تخليق او ايجاد سره به بل کوم عظيم الشان مقصد متعلق نه وي؟ له دغه ژوندون څخه وروسته به بل ژوندون وي، چې په هغه سره د آدم د پيدايښت عظيم مقصد په اکمله او اتمه طريقه سره ښکاره شي.

وَبَرَزُوۡا لِلّٰهِ جَمِيۡعًا فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا لِلَّذِيۡنَ اسۡتَكۡبَرُوۡۤا اِنَّا كُنَّا لَـكُمۡ تَبَعًا فَهَلۡ اَنۡتُمۡ مُّغۡنُوۡنَ عَنَّا مِنۡ عَذَابِ اللّٰهِ مِنۡ شَىۡءٍ ؕ قَالُوۡا لَوۡ هَدٰٮنَا اللّٰهُ لَهَدَيۡنٰكُمۡ ؕ سَوَآءٌ عَلَيۡنَاۤ اَجَزِعۡنَاۤ اَمۡ صَبَرۡنَا مَا لَنَا مِنۡ مَّحِيۡصٍ ﴿۲۱﴾
وَقَالَ الشَّيۡطٰنُ لَمَّا قُضِىَ الۡاَمۡرُ اِنَّ اللّٰهَ وَعَدَكُمۡ وَعۡدَ الۡحَـقِّ وَوَعَدْتُّكُمۡ فَاَخۡلَفۡتُكُمۡ ؕ وَمَا كَانَ لِىَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡ سُلۡطٰنٍ اِلَّاۤ اَنۡ دَعَوۡتُكُمۡ فَاسۡتَجَبۡتُمۡ لِىۡ ۚ فَلَا تَلُوۡمُوۡنِىۡ وَلُوۡمُوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ ؕ مَاۤ اَنَا بِمُصۡرِخِكُمۡ وَمَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُصۡرِخِىَّ ؕ اِنِّىۡ كَفَرۡتُ بِمَاۤ اَشۡرَكۡتُمُوۡنِ مِنۡ قَبۡلُ ؕ اِنَّ الظّٰلِمِيۡنَ لَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۲۲﴾

او ظاهر به شي (خلائق له قبرونو د) دوی الله ته ټول، نو وبه وايي کمزوران (د کفّارو) هغو کسانو ته چې کبر لويي به يې کوله (په کفر کې) چې بېشکه مونږ وو تاسې ته (په دنيا کې) تابعان؛ نو آيا اوس يئ تاسې دفع کوونکي له مونږ څخه له (دغه اخروي) عذابه د الله څخه څه څيز؟، نو وبه وايي (دغه مشر کان): که هدايت کړی وی (لاره ښوولې) وی مونږ ته الله؛ نو خامخا هدايت (لارښوونه) به کړې وه مونږ تاسې ته، برابر دی (اوس) پر مونږ چې آيا شور، فرياد وکړو؟ يا که صبر وکړو، نشته مونږ ته هيڅ ځای د خلاصي. او وبه وايي شيطان کله چې فيصله شي امر (د حساب په قيامت کې): بېشکه چې الله وعده کړې وه له تاسې سره (په دنيا کې) وعده د حق (چې بعث او جحيم او نعيم دی)، او وعده کړې وه ما له تاسې سره، بيا نو خلاف مې وکړله تاسې سره (په وعده کې لکه چې اوس درښکاره شو)، او نه وو ماته پر تاسې هيڅ حکومت (او غلبه) مګر دا قدر چې وبللی ما تاسې (ګمراهی ته)؛ نو قبول کړ تاسې (په تشو غلولو سره) دعوت ځما، نو مه ملامتوئ تاسو ما، او ملامت کړئ نفسونه (ځانونه) خپل، نه يم زه اوس فرياد رس (له عذابه خلاصوونکی) ستاسې، او نه يئ تاسې فرياد رس (له عذابه خلاصوونکي) ځما، بېشکه زه کافر (منکر بېزاره يم) له هغه اشراکه ستاسې ما لره (له الله سره په طاعت کې) پخوا (له دې نه په دنيا کې)، (نو فرمايي الله) بېشکه چې ظالمان شته دوی ته عذاب ډېر دردناک.

تفسير: يعنې له ګردو څنې په يوه لويه عدليه محکمه کې به ګرد خلائق کله چې له خپلو قبورو څخه ژوندي پاڅولی کيږي او راوړاندې کيږي، او په خورا ښکاره صورت په عرصات کې د الله تعالی په حضور کې ګرد سره ټوليږي، نو وبه وايي د کفارو کمزوران هغو کسانو ته چې کبر يې کولو چې: بېشکه مونږ وو تاسې لره تابعان؛ نو آيا پس يئ تاسې دفع کوونکي له مونږ څخه له عذابه د الله د څه څيز؟.

يعنې اتباع به خپلو متبوعينو ته داسې وايي چې: «په دنيا کې تاسې له خپلو ځانونو څخه لويان او مشران جوړ کړي وو، نو ځکه مونږ ستاسې ډېر اطاعت او متابعت وکړ، نو نن د دغه مصيبت په وخت کې مونږ ته څه ګټه او فائده راورسوئ ! آيا داسې کېدی شي چې د دغه الله تعالی د عذاب کومه برخه له مونږ څخه لرې يا سپکه کړئ؟».

دغه وينا به وروسته د دوزخ له ورتګه وکړي، يا به د حشر په ميدان کې ووايي.

ابن کثير (رحمه الله تعالی) اول احتمال تـه ترجيح ورکړې ده، لقوله تعالی: ﴿وَإِذْ يَتَحَاجُّونَ فِي النَّارِ فَيَقُولُ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا﴾ الآيه ـ وغير ذلک من الآيات، و الله تعالی أعلم.

﴿وَقَالَ الشَّيْطَانُ﴾ الآيه ـ يعنې له حساب او کتاب څخه وروسته کله چې داسې فيصله صادره شي چې جنتيان په جنت کې او دوزخيان دوزخ ته لاړ شي؛ نو هلته پخوا له دې نه چې دوزخيان په دوزخ کې ولويږي، دوزخيان به پر لعين ابليس باندې الزام اړوي، چې ای مردوده ! تا په دنيا کې مونږ تېر ايستو، او له لارې څخه دې بې لارې کړو، او په دغه مصيبت کې دې ککړ کړو، نو اوس ځمونږ څه تدبير او چاره هم وکړه !، مثلاً د سپارش او نورو څه انتظام وکړه ! چې د الله تعالی له دغه عذابه ژغورنه (نجات) مو په برخه شي.

دلته لعين ابليس دوی ته به داسې يوه وينا وکړي چې د هغې حاصل دا دی: «بېشکه الله تعالی د صادق القولو انبياوو په ژبه او واسطه د ثواب او عقاب او د دوزخ او جنت په متعلق داسې رښتيا وعدې فرمايلي وې چې د هغوی صداقت په دنيا کې د دلائلو او براهينو له مخې ثابت وو، او نن هم په مشاهده سره ظاهر دی، ما د هغه په مقابل کې تاسې ته د دروغو خبرې او غلطې وعدې کړې وې، چې د هغو کذب او دروغ هم په دنيا کې په ادنی فکر او تأمل سره واضح او ښکاره کېدی شو، او دلته خو ستاسې تر سترګو لاندې د هغې بدې نتيجې راڅرګندې (ښکاره) دي، له ما سره نه

د حجّت او د برهان قوت وو، او نه داسې بل کوم طاقت او قوت وو چې په زور او زياتي سره مې تاسې داسې يوې وړوکې خبرې ته اړ (محتاج) او مجبور کولی شوی، بلا شبه ما تاسې ته د بدۍ تحريک کړی دی، او تاسې ته مې د خپلې ډلې په لوري د راتلو بلنه کړې ده، تاسې پخپله منډه او ډېرې خوښۍ ځما په لوري راوځغلېدئ.

د انصاف خبره خو دا ده: چې له ما څخه پر خپلو نفسونو باندې زيات الزام او ملامتي واړوئ ! ځما د اغواوو، غولولو، لمسولو او تيرايستلو جرم پر خپل ځای پاتې دی، ليکن ځما پر مجرمولو تاسې کله پاک او بري کېدی شئ ! نن تاسې ته مدد رسونه څېرې ـ پخپله له تاسې څخه مدد اخيستل هم امکان نه لري، مونږ او تاسې دواړو د خپلو خپلو جرائمو سره برابر په سزا کې نيولی کيږي، هيڅ يو به د بل په داد او فرياد نه شي رسېدی، تاسې له خپله حماقته په دنيا کې زه د الله تعالی شريک ودرولم، يعنې ځينې مستقيماً د شيطان په عبادت لګيا شول، او ډېر کسان د شيطان په خبرو داسې وغولېدل، او د ده د احکامو انقياد يې په داسې ډول (طريقه) سره وکړو؛ چې هغسې د الله تعالی د احکامو اطاعت او انقياد به يې کولو، په هر حال زه له هغه شرک او کفر چې تاسې پخپل جهالت او غباوت سره کړی دی؛ بيخي منکر او بېزاره يم».

د دغو مکالماتو له نقل کولو څخه مقصود دا دی چې خلق د دغه اضطراب او پرېشانۍ له تصوّره او اندېښنې د شياطين الجن والانس له اتباع او پيروۍ څخه مخ وګرځوي.

وَأُدْخِلَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِمْ ۖ تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ ﴿٢٣﴾

او داخل به کړی شي هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه په هسې) جنتونو کې چې بهيږي لاندې له (ماڼيو او ونو د) هغو ويالې په دې حال چې همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو کې، داخل به کړی شي دوی په حکم او) په اذن د رب د دوی، پېشکشي د دوی (به په وخت د ملاقات کې) په دغه جنت کې لفظ د سلام وي.

تفسير: دغه يې د مقابلې په ډول سره د کفّارو له سزا څخه وروسته د مؤمنينو ښه انجام او خاتمه وفرمايله، شاه صاحب ليکي چې: «په دنيا کې «سلام» دعاء ده د سلامتيا د غوښتلو لپاره، او په آخرت کې سلام ويل مبارکي ده پر سلامتۍ موندلو».

أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَاءِ ﴿٢٤﴾ تُؤْتِي أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا ۗ وَيَضْرِبُ اللَّهُ الْأَمْثَالَ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٢٥﴾ وَمَثَلُ كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ كَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ اجْتُثَّتْ مِن فَوْقِ الْأَرْضِ مَا لَهَا مِن قَرَارٍ ﴿٢٦﴾

آيا وينې ته (ای بنده) څرنګه بيانوي الله يو مثال کلمه پاکيزه (چې لا إله إلا الله ده) په شان د هغې ونې پاکيزې (د خُرما ده) چې بيخ د دې خښ وي (په ځمکه کې) او څانګې يې (پورته) په (جانب د) اسمان (تللې) وي. چې ورکوي (دا ونه) خوراک (مېوه) خپله هر مقرّر وخت په اذن (حکم) د رب خپل، او بيانوي الله مثالونه لپاره د خلقو لپاره د دې چې دوی پند پرې واخلي. او مثال د کلمې خبيثې (چې کلمه د کفر ده) په شان د هغې ونې خبيثې (بدبويې بدخوندې لکه د مرغونې د بوټي) دی، چې ايستلی شوی وي له سر د ځمکې، چې نه وي ده ته هيڅ قدر قرار (ثبات استحکام).

تفسیر: یعنې وګورئ او غور وکړئ څرنګه باموقعه او معنی پیدا کوونکی مثال دی، عقلمن هومره چې په ده کې غور وکړي؛ هغومره په سلهاوو دقائق مسلسلاً ترې پیدا کیږي، په پاکیزه خبرې کې د توحید کلمه ـ د الله تعالی د معرفت خبرې ـ ایمان او ایمانیّات ـ قرآن ـ حمد او ثنا ـ تهلیل ـ تسبیح او رښتیا ویل ګرد سره داخل دي.

په اکثرو روایاتو او آثارو کې دلته د پاکیزه ونې مصداق د خُرما (کجُورې) ونه درولې شوې ده، ګواکې نورې پاکیزه ونې هم تر دې لاندې داخلې کېدی شي.

﴿أَصْلُهَا ثَابِتٌ وَفَرْعُهَا فِي السَّمَآءِ﴾ یعنې د هغې بېخ د ځمکې په ژوره (ښکته) کې غوړېدلې وي، چې په ډېر زورور او سخت باد او سیلۍ سره هم هغه له بېخه نه ایستلی کیږي، او د هغې څانګې اسمان ته رسېدلې دي، یعنې څانګې یې ډېر لوړې او د ځمکې له کثافتونو څخه لرې وي.

﴿تُؤْتِيٓ أُكُلَهَا كُلَّ حِينٍ بِإِذْنِ رَبِّهَا﴾ «چې ورکوي دغه ونه مېوې خپلې هر وخت کې چې ورته مقرر کړی وي الله په اذن او حکم د رب خپل سره»، چې اول «بسر» او په وسط کې «رطب» او آخر کې «تمر» ورکوي، او «تمر» یې خو هر کله موجود وي، یعنې هیڅ یو فصل له مېوو او ثمراتو څخه تش نه وي پاتې، یا یې فرض کړئ چې په دولسو میاشتو کې ګهیځ (سحر) او ماښام به پرې تازه مېوې څوړندې وي.

په ﴿كَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ﴾ کې د کفر کلمه ـ دروغ خبرې ـ او هر هغه خبره چې د الله تعالی له مرضي څخه مخالفه وي؛ داخله ده، او علی الأکثره له دې نه حنظل (مړغونی) مرادوي، ګواکې د لفظ په عموم کې هره خرابه ونه شامله کېدی شي، یعنې لکه چې هیڅ بېخ ونه لري، او په لږ اشاره سره له ځمکې څخه وځي، ګواکې د هغه کم قوّتي او ناپایداري یې ښکاره کړې ده.

د دواړو مثالونو حاصل داسې شو، چې ګواکې د توحید او ایمان دعوی پخه او رښتیا ده، چې د هغه دلائل نهایت صاف او صحیح او مضبوط دي، او د دې لامله چې د فطرت سره موافقه ده؛ د هغې ریښې د زړونو ژورو ته راښکته کیږي، او د صالحه وو اعمالو څانګه عین تر اسمانه پورې لګیږي.

الغرض د حق او صداقت او توحید او معرفت همېشه بهارونه او پسرلي ورځ په ورځ وده کوي، او لوییږي، او په ډېرې پایدارۍ سره لوړیږي، او بالعکس د دروغو خبرو او شرك او کفر او د باطني دعوی بېخ هیڅ نه وي، د باد په لږ خوځولو سره له بېخه وځي، د ناحقې خبرې په اثبات کې هومره زور چې ولګولی شي؛ لیکن د انساني ضمیر او فطرت د مخالفت لامله (له وجې) د هغه بېخ د زړونو تر بېخه نشي رسېدی، د لږ څه فکر کولو په اثر غلط راښکاري، نو څکه مشهوره ده چې دروغ پښې نه لري، یعنې د رښتیا په شان پر خپلو پښو نشي تلی، او نه له هغو څخه په زړونو کې څه نور پیدا کیږي.

يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ ۖ وَيُضِلُّ اللَّهُ الظَّٰلِمِينَ ۚ وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَآءُ ﴿٢٧﴾

مضبوطوي الله هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی په خبرې ثابتې سره په ژوندون د دنیا (په وخت د فتنې او مرګ) کې او په آخرت کې (یعنې په قبر کې) او ښویوي الله ظالمان (له دغې ثابتې خبرې او هېروي یې ترې په دنیا او عقبا کې)، او کوي الله هر هغه څه چې اراده وفرمایي (د کولو یې له اهداء د مؤمنانو او اضلال د مشرکانو).

تفسیر: یعنې حق تعالی د توحید او ایمان په خبرو (چې د هغو مضبوطي او پایداري په پخواني مثال کې ظاهره کړی شوې دی)، مؤمنان په دنیا او آخرت کې مضبوط او ثابت قدم وي، پاتې شو د قبر منزل چې د دنیا او آخرت په

منځ کې «برزخ» دی؛ هغه په دنيا يا په آخرت کې ګڼه شمېرلی شوی، لکه چې له اسلافو څخه دغه دواړه اقوال منقول دي، غرض دا دی چې مؤمنين د دنيا له ژوند څخه نيولې تر محشر پورې د همدغې طيبې کلمې په برکت مضبوط او ثابت قدم پاتې کيږي، په دنيا کې له هومره حوادثو او آفاتو سره چې مخامخ شي، او هر رنګه سخت امتحان او ازموينه چې ترې واخيسته شي؛ په قبر کې د نکيرينو سوال او ځواب وشي، د محشر هولناکه منظره سره له دې چې فکر او هوش وړونکې وي؛ په هره موقع کې همدغه د توحيد کلمه د ده د مېړانې، ثبات، او استقامت ذريعه ګرځي.

﴿وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ﴾ او ښويوي اړوي الله ظالمان مشرکان له دغې ثابتې خبرې او هېروي يې ترې په دنيا او عُقبی کې، له ظالمانو څخه مراد دلته کفّار او مشرکين دي، دوی په دنيا کې هم وښويېدل، او په آخرت کې هم ښوييږي، او له سره د حقيقي برې او کاميابي مخه به ونه ويني.

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ﴿۲۸﴾ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿۲۹﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ قُلْ تَمَتَّعُوْا فَاِنَّ مَصِيْرَكُمْ اِلَى النَّارِ ﴿۳۰﴾

آيا نه يې خبر نه ګورې ته هغو کسانو (د کفارو) ته چې بدل کړی يې دی نعمت د الله په ناشکرۍ سره (په اختيار د کفر) او راښکته کړی دی دوی قوم خپل په دار د هلاکت کې. چې دوزخ دی، داخل به شي دوی په هغه کې، او بد ځای د قرار او هستوګنې دی. او ګرځولي وو دوی الله ته شريکان لپاره د دې چې ګمراه کړي (واړوي خلق) له لارې (د توحيد) د الله، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې نفعه واخلئ تاسې (په شهواتو سره په دنيا کې) نو بېشکه بېرته ورتله ستاسې اور د دوزخ ته دي.

تفسير: له دې نه د کفارو او مشرکينو مشران او سرداران مراد دي، خصوصًا د قريشو رئيسان چې د دوی په لاس کې په هغه وخت کې د عربو واک او اختيار وو، يعني الله تعالی پر دوی څومره انعام او احسان فرمايلی دی، د دوی د هدايت لپاره يې محمد صلی الله عليه وسلم لېږلی دی، قرآن يې نازل کړی دی، د بيت الحرام مجاوران يې ګرځولي دي، د عربو مشرتيا يې ورته روزي کړې ده، دوی د پاک الله د دغو نعمتونو او احسانونو مقابله په دې سره وکړه؛ چې د الله تعالی پر ناشکرۍ يې ملاوې وتړلې، او د ده خبرې يې دروغ وبللې، د ده له رسول سره وجنګېدل، په آخر کې يې خپل قوم له خپلو ځانونو سره يو ځای بيولی د هلاکت په کنده کې ولوېدل.

﴿وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا لِّيُضِلُّوْا عَنْ سَبِيْلِهٖ﴾ يعنې که دوی د الله تعالی له نعمتونو او احساناتو څخه متأثر شوي وی، او د حقيقي منعم په شکر ګذارۍ او اطاعت شعارۍ کې لګيا وی؛ نو ډېر به ښه وو، مګر دوی داسې ونه کړل، بلکه بالعکس بغاوت يې غوره کړ، او د پاک الله په مقابل کې يې نور داسې شيان ودرول؛ چې پر هغو يې د الوهيت صفات ويشلي وو، او هغه عبادت يې چې واحد الله ته مخصوص وو؛ په مختلفو عنوانونو سره د دوی لپاره ثابت کړ، څو په دغې سلسلې کې له خپلو ځانونو سره نور خلق هم بې لارې کړي، او ګمراهي ته يې واړوي، او د خپل سيادت په لومه (دام) کې يې راګير کړي.

قُلْ لِّعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَيُنْفِقُوْا مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سِرًّا وَّعَلَانِيَةً مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خِلٰلٌ ﴿۳۱﴾

ووايه (ای محمده) هغو بندګانو ځما ته چې ايمان يې راوړی دی چې سم دې دروي (ادا کړي) لمونځ، او ورکړه دې کوي ځينې له هغه ماله چې ورکړی دی مونږ دوی ته په پټه (که مستحب

وو)، او په ښکاره (که فرض وو یا واجب)، پخوا له راتلو د هغې ورځې چې نشته سودا پلورل (خرڅول) او پېرودل (اخستل) په هغې کې او نه دوستي.

تفسیر: د کفّارو د احوالو له ذکر کولو څخه وروسته د مخلصینو مؤمنینو د تنبیه لپاره یې داسې وفرمایل څو دوی په پوره ډول سره وپېښ شي، او د عُبودیت په وظائفو کې یوه ذره هم فرق او توپیر (تفاوت) رانه ولي، په زړه او ځان سره د خالق عبادت او د مخلوق خدمت وکړي، چې هغه ډېر ښه عبادت دی، لمونځونه دې د هغو له حقوقو او حدودو د رعایت سره په کامل خشوع او خضوع سره تل ادا کړي، د پاك الله له ورکړې څخه یوه برخه خفیه یا علانیه پر مستحقینو ولګوي، الغرض د هغو کفّارو په مقابل کې چې په کفر او شرك او د نعمتونو په ناشکرۍ کې ډوب تللي دي، مؤمنانو ته لازم دي چې په خپلو ځانونو او مالونو الله تعالی په عبادت او شکر ایستلو سره خپله مستعدي څرګنده (ښکاره) کړي.

﴿مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خِلَٰلٌ﴾ یعنې لمونځ او في سبیل الله انفاق او نور حسنات په هغه ورځ به د دوی په کار ورځي، بیع او شراء او تش د دوستۍ او خپلوۍ تعلقات له سره د دوی په کار نه ورځي، نه به هغه څوك نېك عمل پېرودی (اخستلی) شي، او نه به داسې کوم دوست او خپلوان پیدا کیږي، چې بې له ایمانه او صالح عمله تش د دوستۍ د تعلقاتو لامله د ده نجات ذمه پر خپل ځان واخلي.

﴿ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءٗ فَأَخۡرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزۡقٗا لَّكُمۡۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلۡفُلۡكَ لِتَجۡرِيَ فِي ٱلۡبَحۡرِ بِأَمۡرِهِۦۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلۡأَنۡهَٰرَ ۝٣٢ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلشَّمۡسَ وَٱلۡقَمَرَ دَآئِبَيۡنِۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ ۝٣٣ وَءَاتَىٰكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلۡتُمُوهُۚ وَإِن تَعُدُّواْ نِعۡمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحۡصُوهَآۗ إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ لَظَلُومٞ كَفَّارٞ ۝٣٤﴾

الله هغه ذات دی چې پیدا کړي یې دي اسمانونه او ځمکه او نازلې کړې یې دي (له طرفه) د اسمانه اوبه، نو رایستلې یې دي په دې اوبو سره له هر قسمه مېوو څخه رزق (روزي) تاسې ته، او مسخّر (تابع) کړې یې دي تاسې ته بېړۍ لپاره د دې چې ګرځي په سیند کې په امر (حکم) د دغه (الله) سره، او مسخّر کړې (لګولې) یې دي تاسې ته ویالې، او مسخّر کړې (په کار لګولې) یې دي لپاره د منافعو ستاسې لمر او سپوږمۍ په دې حال چې ګرځېدونکې) دي سم له دستور سره برابر، او په کار کې یې لګولي دي تاسې ته شپه او ورځ. او درکړي یې دي تاسې ته ځینې له هر هغه څیز چې سوال کړی تاسې د هغه (شي سم له مصلحته)، او که وشمېرئ تاسې (ټول انواع او ګرد افراد د) نعمت د الله؛ نو وبه نه شمېرلی شئ تاسې دا نعمتونه د الله (تر آخره پورې)، بېشکه انسان خامخا لوی ظالم ډېر ناشکره دی.

تفسیر: یعنې الله تعالی د خپل قدرت او حکمت په کمال سره په اوبو کې داسې یو قوت پیدا کړی دی، چې د ونو او کښتونو (فصلونو) او د نورو د ودې او نشوونما او حاصل ورکولو سبب ګرځي، او د همغو په ذریعه ځمونږ د هغو له مېوو او حاصلاتو څخه مستفید کیږو.

﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلۡفُلۡكَ لِتَجۡرِيَ فِي ٱلۡبَحۡرِ بِأَمۡرِهِۦۖ﴾ یعنې د سمندر په خوفناکو څپو او موجونو کې په یوې وړوکې بېړۍ باندې سپرېږئ، او له کومه ځایه تر کومه ځایه پورې رسېږئ، او په څه اندازه سره تجارتي او غیر تجارتي فوائد ترې حاصلوئ، دغه خو د الله تعالی په قدرت او حکم سره دی؛ چې د سمندر په لویو لویو څپو او هسکو هسکو موړو او غټو غټو شپېړو کې یوه وړوکې (د پیاز د پوټکي په شان) بېړۍ یا جهاز نه یواځې ساتي، بلکه له یوې لوېې وچې څخه یې بلې لوېې وچې ته هم بیایي.

﴿وَسَخَّرَ لَكُمُ الْأَنْهٰرَ﴾ يعني په ويالو، خوړونو، سيندونو، ويالو، لښتيو او نورو كې د اوبو راتلل او لړې ځايونو ته رسېدل - اګر كه د بېړۍ په شان ستاسې د فكر او ارادې تابع نه ده؛ خو بيا هم ستاسې په كارونو كې بوخت او لګيا دي.

همداسې لمر، سپوږمۍ او ستوري هم د يوه معين نظام او ضابطې سره سمه د خپل تاكلي دود (رواج) او دستور سره موافق تماماً تر قيامه د قيامت پورې پخپلو حركاتو او ورسپارليو شويو خدماتو كې مصروف دي، او له سره نه ستومانه او نه ستړي كېږي.

يا شپه او ورځ يوه په بله پسې په همغه تاكلي عادت سره سم او تل راځي او ځي، دغه ګرد شيان اګر كه په دې معنى ستاسې په تصرف او اختيار كې نشته؛ چې كله مو او چېرې مو چې زړه وغواړي د هغوى د قدرتي حركاتو او تأثيراتو مخه ونيسئ، خو بيا هم تاسې داسې ډېر تصرّفات او تدابير په كار اچولي شئ چې د هغو تأثيراتو څخه بېشماره فوائد حاصل كړئ او لكه چې كوئ - د انساني تصرّفاتو او تدابيرو څخه ماسوا دوى بالذات هم تل تر تله ځمونږ د دې دنيا په يو نه يو خدمت كې مشغول او لګيا دي، مونږ او تاسې په هوسايي (آسانۍ) سره ژوندون كوو، او دوى سرګردانه ځمونږ په منفعت او خدمت كې مداومت كوي.

﴿وَإِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللّٰهِ﴾ يعني د الله تعالى نعمتونه دومره ډېر دي، چې كه تاسې ګرد سره يو ځاى شئ، او په اجمالي ډول سره د هغو شمېرلو سره پيل (شروع) وكړئ؛ نو ګرد به سره ستړي او ستومانه كېږئ.

﴿إِنَّ الْإِنْسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ﴾ يعني د انسان په جنس كې ډېره زياته بې انصافي او بې شكري او بېقدري شته، چې سره د دومره بېشماره احساناتو له ليدلو بيا هم د حقيقي منعم حق نه پېژني، او شكر يې نه اداء كوي.

وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا وَّاجْنُبْنِىْ وَبَنِىَّ اَنْ نَّعْبُدَ الْاَصْنَامَ ۝٣٥

او (ياد كړه) هغه وخت چې وويل ابراهيم: اى ربه ځما ! وګرځوه دا ښار (د مكې) امن والا، او لرې وساته ما او ځامن ځما له دې نه چې عبادت به كوو د بُتانو.

تفسير: يعني د قُريشو هغو مشرانو چې د دوى د كُفران او شرك او كفر بيان پاس په ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ﴾ الآيه - كې شوى وو؛ هغوى ته د ابراهيم عليه السلام قصه ور په يادوي، او تنبيه وركوي چې تاسې د هغه د اولاديت لامله د «كعبة الله» او لوى حرم مجاوران شوي يئ، هغه د دې كعبې اساس خاص پر توحيد ايښى وو، د همده د دعاوو په اثر الله جل جلاله دغه د مكې معظمې ښار ودان كړ، او په دغو كلكو پرښو (ګټو) او شګلنو ځمكو كې د ظاهري او باطني نعمتونه امبارونه يې جوړ كړل، ابراهيم عليه السلام له دنيا ځني په داسې حال كې لاړ چې داسې دعاوې او وصيتونه يې كول، چې د ده اولاده د شرك طريقه اختيار نه كړي، اوس تاسې ته فكر كول او شرمېدل په كار دي، چې تر كومه ځاى پورې مو د ده د وصيتونو رعايت كړى دى؟ يا د ده له دعاء څخه مو برخه اخيستې ده، او تر كومه حده پورې مو د الله تعالى پر احساناتو شكر ايستلى دى.

﴿رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا الْبَلَدَ اٰمِنًا﴾ الآيه - يعني مكه معظمه «حرم آمن» وګرځوي لكه چې الله تعالى مأمونه هم وګرځوله، او هم زه او هم ځما اولاده د تل لپاره د بُت پرستى څخه وژغورې (محفوظ كړې)، او ترې مو لرې وساتې، غالباً دلته به له اولاده ځني خاص صُلبي اولاد مراد وي، نو څكه د دوى په صلبي اولاد كې دغه مرض رانغى، او كه عام ذريات ترې مراد وي، نو ويلى كيږي چې دغه دعاء د ځينو په حق كې نه ده قبوله شوې.

سره له دې چې ابراهيم عليه السلام معصوم رسول وو، مګر د دعاء له آدابو څخه ده؛ چې له نورو ځني پخوا سړى خپل ځان ته دعا وكړي، دا راز (قسم) دعاوې چې له انبياوو څخه منقولې دي؛ په هغو كې دغې خبرې ته هم اشاره ده چې د انبياوو عصمت هم د دوى له لوري نه دى پيدا شوى، بلكه د الله تعالى له حفاظته او صيانته موجود شوى دى، نو څكه دوى تل د همغه په دربار كې التجاء كوي چې هغه د دوى د عصمت او (تلطّفا) ضامن او كفيل شوى دى.

تنبيه: حافظ عماد الدين ابن كثير (رحمه الله تعالى) په نزد ابراهيم عليه السلام دغه دعاوې د معظمې مكې د ودانى او د كعبې شريفې د تعمير څخه وروسته كړي دي، په (اول جزء البقره په (۱۲۶) تر (۱۲۹) آياتونو او (۱۵) ركوع) كې د كومو دعاوو چې ذكر شوى دى؛ هغه يې د كعبې شريفې د بناء په وخت د اسماعيل عليه السلام په معيّت فرمايلي دي، او دغه دعاوې يې ډېره موده وروسته په سپين ږيرتيا كې كړي دي.

رَبِّ إِنَّهُنَّ أَضْلَلْنَ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ ۖ فَمَن تَبِعَنِي فَإِنَّهُ مِنِّي ۖ وَمَنْ عَصَانِي فَإِنَّكَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٦﴾ رَّبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ مِن ذُرِّيَّتِي بِوَادٍ غَيْرِ ذِي زَرْعٍ عِندَ بَيْتِكَ الْمُحَرَّمِ رَبَّنَا لِيُقِيمُوا الصَّلَاةَ فَاجْعَلْ أَفْئِدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِي إِلَيْهِمْ وَارْزُقْهُم مِّنَ الثَّمَرَاتِ لَعَلَّهُمْ يَشْكُرُونَ ﴿٣٧﴾

اى ربه ځما ! بېشكه دغو (تيرو (كټو) بُتانو) لغزولي دي ډېر له خلقو (چې سبب د ګمراهى د دوى شوى دى) نو هر چا چې متابعت وكړ ځما؛ نو بېشكه هغه له (أهل ملت) ځما دى، او هر چا چې نافرماني وكړه ځما نو بېشكه چې ته يې ښه بخښونكى (د خطيّاتو) ډېر رحم كوونكې يې. اى ربه ځمونږ ! بېشكه چې ما اوسولي دي ځينې له اولاد خپل (چې اسماعيل او اولاد يې دى) په داسې يوه وادي (ناو) كې چې نه دى خاوند د كښت (فصل) په نزد د كوټې ستا چې حرمت (عظمت) والا دہ، اى ربه ځمونږه (ومې اوسول دوى دلته) د دې لپاره چې سم ودروي (اداء كړي سره له ټولو حقوقو) لمونځ، نو وګرځوه (مائل كړه) زړونه د ځينو خلقو په مينه (چې راځغلي دوى ته، او رزق روزي وركړه دوى ته له هر قسمه مېوو څخه لپاره د دې چې دوى شُكر وباسي.

تفسير: يعنې هغو كسانو چې د خالص توحيد لاره غوره كړې ده، او ځما خبرې يې منلي دي؛ هغه ځما په ډله كې شامل دي، او هغه كسان چې ځما خبرې يې نه دي منلي، او ځمونږ له لارې څخه بېل شوي دي؛ نو ته دوى ته پخپلې مهربانۍ او بخښنې سره د توبې توفيق وركولى شې، كه ستا لطف او مهرباني وي؛ نو هغه به هم ايمان راوړي، او خپل ځان به د خصوصي رحمت او ابدي نجات مستحق ګرځولى شي، يا دا مطلب چې ته قدرت لرې چې هغه هم په همدغه موجوده حالت كې وبخښې، اګر كه ستا له حكمته د هغه وقوع ونشي.

تنبيه: د «المائدة» د سورت په آخر كې د ابراهيم خليل الله عليه السلام د دې قول او د مسيح عليه السلام په مقوله كې مو فرق بيان كړى دى؛ هغه دې بيا وكتلى شي !.

﴿رَبَّنَا إِنِّي أَسْكَنتُ﴾ الآيه ـ اى ربه ځمونږه ! بېشكه چې ما اوسولي دي او دېره كړي دي ځينې له اولادې خپلې يعنې اسماعيل عليه السلام، ځكه چې بل اولاد يې اسحاق عليه السلام او نور په شام كې وو، د الله تعالى په حكم يې اسماعيل عليه السلام د تي رودلو په وخت كې د ده د والدې (بي بي هاجرې) سره په دغه تور سپېره ډاګ او ډېر ډګر (ميدان) كې پرېښود، او دى ترې لاړ، وروسته له هغه د «جرهم» د قبيلې څه خلق هلته ورسېدل، ځكه چې الله تعالى د اسماعيل عليه السلام د تندې او د بي بي هاجرې رضي الله عنها د تلوسې او منډې له امله د پرښتې په ذريعه هلته د «زمزم» چينه بهولې ده، نو د «جرهم» كوچيانو چې دغه اوبه وليدې، هلته ښكته شول، او د بي بي هاجرې رضي الله عنها په اجازه همغلته مسكون شول.

كله چې اسماعيل عليه السلام لوى شو؛ نو په همدغې قبيلې كې يې واده وشو، په دې ډول چېرې چې نن ورخ مكه معظّمه ده؛ يو كلى ودان شو، ابراهيم عليه السلام به هم كله كله له «شام» څخه دلته تشريف راوړ، او د دې او د دې ښار هستېدونكو ته به يې داسې دعاوې فرمايلې چې: «اى الها ! ما خپل يو ځوى په دغه لامزروعه (بې كرونده) او ډاګ ډېر

ميدان کې ستا په حکم ستا معظّم او محترم کور سره نژدې دېره کړې دي، چې دی او د ده نسل ستا او ستا د دې کور حق ادا کړي؛ نو ته پخپل فضل او کرم سره د خلقو زړونه دې لوري ته متوجه کړه، څو دوی دلته راشي، او ستا عبادت وکړي، او د دې ښار رونق زيات شي، او هم د دوی د روزۍ او زړه جمعي لپاره له غيبه داسې سامان وربرابر کړه؛ چې برسېره پر غلو او اوبو چې د ژوندانه له ضرورياتو څخه دي؛ عمده ثمرات او ښې مېوې همدلته په افراط سره پيدا شي، چې خلق د زړه په اطمينان سره ستا په عبادت او شکرګذارۍ کې مصروف شي».

پاک الله دغه ګردې دعاوې قبولې کړې، لکه چې ترنن ورځې پورې هر کال په زرګونو او لکونو انسانان له ګرده جهانه هلته سره ټولېږي، او د اعلی قسم ميوو او عمده ثمراتو په مکې معظمې کې دومره کثرت او افراط وي؛ چې ښايي د دنيا په کومې بلې برخې کې د هغه ساری او نمونه لږ وي، حال دا چې پخپله په مکه معظمه کې يوه باثمره ونه به نه وي موجوده، له ځينو اسلافو څخه منقول دي چې: ابراهيم عليه السلام پخپله دعا کې ﴿اَفۡـِٕدَةً مِّنَ النَّاسِ﴾ د «څه خلقو زړونه» فرمايلي وو، که نه ګرد عالم به هغه لوري ته تلل.

رَبَّنَآ إِنَّكَ تَعۡلَمُ مَا نُخۡفِي وَمَا نُعۡلِنُۗ وَمَا يَخۡفَىٰ عَلَى ٱللَّهِ مِن شَيۡءٖ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَلَا فِي ٱلسَّمَآءِ ﴿٣٨﴾

ای ربه ځمونږ! بېشکه چې تاته معلوم دي هغه چې پټوو يې مونږ، او په هغه چې ښکاره کوو يې، او نه دي پټ پر الله باندې هيڅ څيز (نه) په ځمکه کې (له سفلياتو نه) او نه په اسمان کې (له علويّاتو نه).

تفسير: يعنې په ځمکه او اسمان کې هيڅ له تا څخه پټ نه دي، نو بيا ځمونږ ظاهر او باطن له تا ځنې څرنګه پټ او مخفي پاتې کېدی شي؟ داسې چې فرمايلي يې دي: «هغه چې پټوو يې مونږ او هغه چې ښکاره کوو يې» په دغه کې د مفسرانو څو اقوال دي: ليکن د تخصيص هيڅ وجه نه ده، الفاظ عام دي، چې ګردو ښکاره وو او پټو شيانو ته شامل دي.

ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ ٱلَّذِي وَهَبَ لِي عَلَى ٱلۡكِبَرِ إِسۡمَٰعِيلَ وَإِسۡحَٰقَۚ إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ ٱلدُّعَآءِ ﴿٣٩﴾

(ټول د کمال صفت او) ثنا ده (هغه) الله لره چې رابخښلي يې دي ماته سره له زوړوالي اسماعيل او اسحاق، بېشکه چې رب ځما خامخا ښه اورېدونکی (قبلوونکی) د دعاء دی.

تفسير: يعنې په زوړتوب کې اسحاق عليه السلام د «ساري» او اسماعيل عليه السلام د «هاجرې» له ګېډې څخه په غير متوقعه ډول سره دې راعنايت فرمايلي دي، لکه چې د اولاد په متعلق ځما د ﴿رَبِّ هَبۡ لِي مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ دعا دې واورېده، دغه دعاء هم راقبوله کړه.

رَبِّ ٱجۡعَلۡنِي مُقِيمَ ٱلصَّلَوٰةِ وَمِن ذُرِّيَّتِيۚ رَبَّنَا وَتَقَبَّلۡ دُعَآءِ ﴿٤٠﴾

ای ربه ځما! وګرځوې ما همېشه قائموونکی (اداء کوونکی) د لمانځه (سره له ټولو حقوقو يې) او ځنې له اولادې ځما (هم کلک کړې پر لمانځه)، ای ربه ځمونږ! او قبوله کړې دعاء ځما.

رَبَّنَا ٱغۡفِرۡ لِي وَلِوَٰلِدَيَّ وَلِلۡمُؤۡمِنِينَ يَوۡمَ يَقُومُ ٱلۡحِسَابُ ﴿٤١﴾ ع

ای ربه ځمونږ! بخښنه وکړې ماته او مور او پلار ځما ته او مؤمنانو ته په هغه ورځ (د قيامت کې) چې قائمېږي حساب.

تفسیر: دغه دعاء یې غالباً د خپل پلار د مړ کېدلو څخه پخوا چې د کفر په حالت مړ شو، او وروسته دی پرې خبر شو؛ فرمایلې ده، نو مطلب به یې داسې وي چې: هغه ته د اسلام هدایت ورکړې !، او د قیامت په ورځ یې د مغفرت وړ (لایق) او مستحق وګرځوې !؛ او که د مړ کېدلو څخه یې وروسته دعا فرمایلې وي؛ نو ښایي تر هغه وخته پورې به دی نه وو مطلع کړی شوی، چې کفّار د مغفرت وړ (لایق) نه دي.

وَلَا تَحْسَبَنَّ اللَّهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظَّٰلِمُونَ ۚ إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَارُ ﴿٤٢﴾ مُهْطِعِينَ مُقْنِعِي رُءُوسِهِمْ لَا يَرْتَدُّ إِلَيْهِمْ طَرْفُهُمْ ۖ وَأَفْئِدَتُهُمْ هَوَاءٌ ﴿٤٣﴾

او مه کوه ګمان (ای انسانه) په الله چې غافل (بې خبره) دی له هغو کارونو چې کوي یې ظالمان ! بېشکه همدا خبره ده چې وروستي کوي دوی هغې ورځې ته چې خلاصې به پاتې وي (له ډېر وېرې) په هغه کې سترګې. چې منډې وهونکې به وي دا (مخلوقات) چې جګ (اوچت) نیوونکي به وي د سرونو خپلو (په طرف د بلونکي محشر کې)، بېرته به نه ګرځي دوی ته رپول د سترګو د دوی، او زړونه د دوی به تش وي (له عقله او فهمه له ډېرې وېرې).

تفسیر: یوه رکوع پخوا د ډېرو عظیمه وو نعماوو د ذکر کولو په منځ کې یې فرمایلې وو: ﴿إِنَّ الْإِنسَانَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ﴾ «بېشکه انسان خامخا لوی ظالم او ډېر ناشکره دی»، وروسته له هغه د ابراهیم علیه السلام قصه یې واوروله، او د مکې معظمې کفّارو ته څینې خصوصي نعمتونه ور په یاد کړه ـ او د دوی د ظلم او شرک په لوري یې اشاره وفرمایله؛ په دغه رکوع کې تنبیه فرمایي: که د ظالمانو په تنبیه فرمایلو کې څه ځنډ وشي، نو داسې یې مه ګڼئ چې الله تعالی د دوی له حرکاتو څخه بې خبر دي، په یاد یې ولرئ چې د دوی هیڅ یو وړوکی او لوی کار له الله تعالی څخه پټ نه دی، البته د ده عادت داسې نه دی چې فوراً مجرم ونیسي، او تباه یې کړي، دې ډېرو لویو ظالمانو ته هم مهلت ورکوي، چې یا له خپلو جرائمو څخه لاس واخلي، یا د جرائمو په ارتکاب کې تر دې حده پورې ورسېږي چې له قانوني حیثیته د ده د سزا په مستحق کېدلو کې هیڅ قسم خفاء پاتې نشي.

تنبیه: ﴿وَلَا تَحْسَبَنَّ﴾ خطاب هر هغه انسان ته دی چې داسې یو خیال یې په زړه کې پیدا کېدی شي، او که پاک رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خطاب؛ نو د دوی له دې مخاطبې څخه به نورو ته اورول مقصود وي، چې کله یې خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم ته داسې وفرمایل چې داسې خیال مه کوه ! حال دا چې داسې یو خیال له سره دوی ته قریب هم نشو راتلی، نو د نورو په حق کې داسې خیال به په څه اندازه واجب الاحتراز وي.

﴿إِنَّمَا يُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَارُ﴾ یعنې د قیامت په ورځ کې له ډېر هول، هیبت او دهشت څخه سترګې به همداسې رډې بلډې او تېغې پېغې راښکاري، او هم داسې بوتې وتلې او پرانیستلې به پاتې وي، یعنې رپولی به یې نشي، او همداسې وازې به ختلې وي، او هیڅ به یې نشي پټولی.

وَأَنذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ نُّجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ ۗ أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ ﴿٤٤﴾ وَسَكَنتُمْ فِي مَسَاكِنِ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ وَتَبَيَّنَ لَكُمْ كَيْفَ فَعَلْنَا بِهِمْ وَضَرَبْنَا لَكُمُ الْأَمْثَالَ ﴿٤٥﴾

او وېروه (ای رسوله څما) خلق له هغې ورځې څخه چې را به شي دوی ته عذاب (په قیامت یا د مرګ په وخت کې)؛ نو وبه وایي هغه کسان چې ظلم یې کړی دی (په شرک او تکذیب سره): ای ربه ځمونږ ! وروستي کړه (مهلت راکړه) مونږ ته تر نیټې نژدې پورې

چې قبوله کړو بلنه ستا او متابعت وکړو د رسولانو، (وبه فرمايي الله توبيخاً) آيا نه وئ تاسو چې قسم به کولو تاسې پخوا له دې نه (په دنيا کې) چې نشته تاسې ته هيڅ زول (له دنيا نه آخرت ته په بيا ژوندون سره). او اوسېدلي وئ تاسې په کورونو د هغو کسانو کې چې ظلم يې کړی وو پر ځانونو خپلو (په کفر او معاصيو سره)، او ښکاره شوې ده تاسې ته (دغه خبره) چې څرنګه کار کړی وو مونږ په دوی باندې (د عذابه او اهلاکه) او بيان کړي وو مونږ تاسې ته مثالونه.

تفسير: د (العذاب) څخه يا خو د قيامت ورځ او اخروي عذاب مراد دی، يا د موت وخت او د ده د سکراتو او د روح د قبض شدّت مقصود دی، يا له دنيوي عذاب څخه د هلاک کېدلو ورځ اراده کولی شي.

﴿فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا﴾ الآية ـ که دغه وينا په دنيا کې د عذاب يا د موت د شدّت د ليدلو په وخت کې وي؛ نو يې مطلب ظاهر دی، چې اوس څو ورځې نورې هم مونږ ته مهلت راکړه !مونږ درسره وعده کوو چې وروسته له دې نه خپله رويه او عمل ښه کوو، يعني د حق دعوت قبلوو، او د انبياوو متابعت اختياروو، کما قال الله تعالی: ﴿حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ * لَعَلِّىٓ أَعْمَلُ صَٰلِحًا فِيمَا تَرَكْتُ كَلَّآ﴾ (۱۸ جزء د «المؤمنون» (۹۹ـ۱۰۰) آيت (۶) رکوع).

او که د دوی دغه مقوله د قيامت په ورځ کې وي؛ نو په دغه صورت کې به د مهلت غوښتلو معنی داسې وي؛ چې مونږ بيا دويم ځلي د لږ څه مدّت لپاره دنيا ته بېرته ولېږه، نو بيا وګوره چې مونږ په څه اندازه خپله وفاداري درښکاره کوو، کما قال الله تعالی: ﴿وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ ٱلْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَٱرْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ﴾ (۲۱ جزء د «السجدة» سورت (۱۲) آيت (۲) رکوع).

وَقَدْ مَكَرُوا۟ مَكْرَهُمْ وَعِندَ ٱللَّهِ مَكْرُهُمْ وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ ﴿۴۶﴾

او په تحقيق سره کوښښ د مکر او فرېب وکړ دوی د مکر او فرېب خپل حال دا چې الله سره دی مکر د دوی، او نه وو مکر (فرېب) د دوی (داسې لوی) چې له ځايه به بېرته شي له دغه مکره غرونه (له خپله ځايه).

تفسير: يعنې ګردو پخوانيو او وروستنيو ظالمانو خپل مکرونه او فرېبونه چلولي دي، او د انبياوو په مقابل کې د حق د مغلوبولو او لرې کولو هيڅ يو تدبير او سازش دوی نه دی پرېښی، دوی ګرد تدابير، مکر، فرېب او چال د الله تعالی په نزد يو په يو ښکاره او محفوظ دي، او خامخا دوی ته د هغو سزا ورکوي.

﴿وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ لِتَزُولَ مِنْهُ ٱلْجِبَالُ﴾ يعنې دوی ډېر زيات مکرونه او فرېبونه کړي دي، او د هغو نتائج يې ليدلي دي، مګر د الله تعالی د چل په مقابل کې هغه ګرد ناکامه او بې نتيجې پاتې دي، آيا دغه مکر د دوی به غرونه له خپلو ځايونو څخه وخوځولی شي؟ يعنې انبياء عليهم السلام او حقه وو شرائع چې له غرونو څخه زيات مضبوط او مستقيم دي؛ د دوی د دغو مکاريو او فرېبونو څخه به لږ څه متأثر او متضرر شي؟ حاشا وکلاّ.

د دې تفسير سره موافق په ﴿وَإِن كَانَ مَكْرُهُمْ﴾ کې «إن» به «نافيه» وي، او د آيت مضمون د ﴿وَلَا تَمْشِ فِى ٱلْأَرْضِ مَرَحًا إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ ٱلْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ ٱلْجِبَالَ طُولًا﴾ (۱۵ جزء د بني اسرائيل (۳۷) آيت (۴) رکوع) سره به مشابه وي.

ځينو مفسرينو «إن» شرطيه او «واو» وصليه اخيستی، او د دې آيت مطلب يې داسې بيان کړی دی چې دوی ډېر لوی لوی داسې مکرونه او فرېبونه وکړل، چې د الله تعالی د حفاظت په مقابل کې هيڅ ثابت شو، اګر که د دوی دغه مکرونه او فرېبونه في حدّ ذاته داسې غټ او زبردست وو؛ چې يو ځلي غرونه به يې هم له خپل ځايه بېرته کولی شوی، او له خپله ځايه يې لوړولی شوی.

فَلَا تَحْسَبَنَّ اللّٰهَ مُخْلِفَ وَعْدِهٖ رُسُلَهٗ

نو مه کوه ګمان په الله باندې د خلاف کوونکي د وعدې خپلې رسولانو خپلو سره.

تفسیر: یعنې هغه وعده چې په ﴿اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا﴾ او په ﴿كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِيْ﴾ او نورو آیتونو کې کړې شوې ده.

اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴۷﴾

بېشکه الله ډېر غالب ښه قوي دی (په انفاذ د احکامو) څښتن (خاوند) د انتقام (سخت عذاب له اعداء الله).

تفسیر: مجرم له ده څخه نه خلاصېدی شي او نه چېرې تښتېدلی شي، او نه دی پخپله داسې مجرمان همداسې بې له سزا ورکولو څخه خوشې پرېږدي.

يَوْمَ تُبَدَّلُ الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿۴۸﴾

(یاد کړه) هغه ورځ چې بدل به کړه شي (په کې) دغه ځمکه په بلې ځمکې سره او اسمانونه به هم بدل کړې شي (په نورو اسمانونو سره)، او را وبه وځي (ټول خلق له قبورو او په ښکاره میدان به ودرېږي خاص) الله ته چې یو ښه غالب ډېر قوي دی.

تفسیر: په قیامت کې دغه اسمان او ځمکه په دغه موجوده هیئت سره به باقي نه پاتې کېږي، یا خو د دغو ذوات به بدل کړې شي، یا به یوازې په صفاتو کې تغییر کېږي، او له ځینو روایاتو څخه معلومېږي چې ښایي څو کرتې دغه تبدیل او تغییر ته به وار ورسېږي، والله أعلم.

د ﴿وَبَرَزُوْا لِلّٰهِ﴾ مطلب په ﴿فَقَالَ الضُّعَفٰٓؤُا﴾ الآیة ـ په ذیل کې پخوا لیکلی شوی دی، هلته دې ولوست شي !.

وَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ مُّقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ ﴿۴۹﴾

او وینې به ته دغه ګناهګاران (کافران) په دغه ورځ کې چې تړلي شوي به وي یو له بل سره په ځولنو (غاړکیو او ځنځیرونو) کې.

تفسیر: یعنې د یوه یوه نوعیت څو څو تنه مجرمان به په یوه ځنځیر کې تړلي کېږي کما قال الله تعالی: ﴿اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوْا يَعْبُدُوْنَ﴾ (۲۳ جزء د الصافات سورت (۲۲) آیت (۲) رکوع) ﴿وَاِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ﴾ (۳۰ جزء د التکویر (۷) آیت).

سَرَابِيْلُهُمْ مِّنْ قَطِرَانٍ وَّتَغْشٰى وُجُوْهَهُمُ النَّارُ ﴿۵۰﴾

قمیصونه د دوی له نانزړو به وي، او پټ به کړي مخونه د دوی اور (د دوزخ).

تفسیر: په نانزړو کې اور په ډېره جلتی او سرعت اثر کوي، او سخت بدبویي (ډېوزې) ترې خیژي، بیا څرنګه چې د جهنّم اور دی همغسې د هغه ځای نانزړو یا ځرنه (ګوګړ) هم وګڼئ، بل دا چې مخ د حواسو او مشاعرو ځای، او د انسان په ظاهري اعضاوو کې له ګردو څخه اشرف عضو دی؛ نو ځکه یې په خصوصیت سره ذکر کړ.

﴿لِيَجْزِيَ اللّٰهُ كُلَّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٥١﴾﴾

(راوځي له قبورو لپاره د دې) چې جزاء ورکړي الله هر یوه نفس ته (جزاء) د هغه عمل چې کړی يي وي، بېشکه الله ډېر ژر دی حساب (د ده).

تفسير: يعني د هغې خبرې په مخ راتلل بالکل يقيني دي، او هغه له سره لرې مه ګڼئ ! کما قال الله تعالى: ﴿اِقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِىْ غَفْلَةٍ مُّعْرِضُوْنَ﴾ (۱۷ جزء د الأنبياء سورت (۱) آيت (۱) رکوع).

يا يې دا مطلب: کله چې حساب اخيستل کيږي؛ نو بيا په هغه کې هيڅ ځنډ نه کيږي، د ګردو اولينو او آخرينو، پېريانو او انسانانو د ذرې ذرې عمل حساب کتاب به ډېر ژر کيږي، ځکه چې نه پر الله باندې کوم شی مخفي دی، او نه دی يو شان (شی) له بل شان (شي) څخه مشغولولی شي ﴿مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ﴾ (۲۱ جزء د لقمان سورت (۲۸) آيت (۳) رکوع).

﴿هٰذَا بَلٰغٌ لِّلنَّاسِ وَلِيُنْذَرُوْا بِهٖ وَلِيَعْلَمُوْٓا اَنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّلِيَذَّكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ ﴿٥٢﴾﴾

دغه قرآن خبر رسونه ده (کافي ده له جانبه د الله) لپاره د خلقو (چې پند پرې واخلي) او لپاره د دې دی چې وويرولی شي (خلق) په (وعظ) د ده سره، او چې وپوهيږي دوی په دې باندې چې بېشکه خبره همدا ده چې الله معبود واحد دی، او چې پند واخلي (ترې) خاوندان د عقلونو خالصو.

تفسير: يعني د غفلت له خوبه وينس شئ، او له الله څخه وويريږئ، او د ده په آيتونو کې غور وکړئ، چې له هغه څخه د الله تعالى په وحدانيت باندې يقين حاصل شي، او له عقل او فکر څخه کار واخلئ، او پر نصائحو يې عمل وکړئ.

(تمت سورة إبراهيم عليه السلام، ولله الحمد والمنّة)



# سُورَةُ الحِجر

«د (حجر) سورت مكي دى، پرته له (۸۷) آیت څخه چې مدني دى، (۹۹) آیتونه او (۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۱۵) او په نزول کې (۵۴) سورت دى، وروسته د یوسف علیه السلام له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکى دى.

الٓرٰ تِلۡكَ اٰيٰتُ الۡكِتٰبِ وَقُرۡاٰنٍ مُّبِيۡنٍ ﴿۱﴾

دغه چې وروسته راځي آیاتونه د کتاب دي او د قرآن چې واضح (بیانوونکى د حق او د باطل) دى.

تفسیر: یعني دا د هغه جامع او عظیم الشأن کتاب آیتونه دي چې د هغه په مقابل کې به کوم بل کتاب د کتاب ویلو وړ (لایق) او مستحق نه وي، او آیتونه دي د هغه قرآنکریم چې واضح بیانوونکي د حق او د باطل دي، او اصول یې نهایت صاف ـ دلائل یې روښان ـ احکام یې معقول ـ د اعجاز وجوه یې واضح ـ او بیانات یې عجیب او فیصله کوونکي دي، نو وروسته له دې نه هر څه چې بیان کېدونکي دي؛ ښایي چې مخاطبین هغه په پوره توجّه سره واوري !.

رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا لَوۡ كَانُوۡا مُسۡلِمِيۡنَ ﴿۲﴾

ډېر ځلي به ارزو (تمنّا) کوي هغه کسان چې کافران شوي دي (کله چې ویني خپل احوال او د مؤمنانو احوال، او جنت او دوزخ) چې کاشکې وى دوى مسلمانان.

تفسیر: که نن منکرینو د قرآن عظیم او د اسلام په شان د الله تعالی د عظیم الشأن نعمتونو قدر ونه کړ؛ لیکن داسې یو وخت راتلونکى دى، چې دغه خلق به پر خپلې محرومۍ ژاړي، او د حسرت لاسونه به سره مښي.

د دغه آیت په تفسیر کې مفسّرینو اختلاف کړى دى، مونږ د (ابن الأنباري) له قوله سره موافق هغه عام ایښى دى، یعنې په دنیا او آخرت کې په هغو مواقعو کې چې د کافرانو د نامرادۍ او د مسلمانانو د کامیابۍ مناظر او مظاهر وردمخه شي؛ په هره موقع کې کفّار د خپل پاتې کېدلو او ناکامۍ لامله د خپل مسلمان کېدلو تمنّا کوي، او د اسلام له نعمته د محروم پاتې کېدلو حسرت او واوېلا به کوي.

او د انتهایي حسرت او افسوس ځاى به هلته وي؛ کله چې پرښتې دوى د ورح قبض کولو لپاره ورمخامخ ودرېږي، او د عالم غیب حقائق د دوى تر سترګو لاندې راشي، نو دلته به له ډېره غمه خپلې ګوتې چیچي، او تمنّا کوي؛ کاشکې مونږ هم اسلام قبول کړى وى، څو نن د دغه بعد الموت له عذابه محفوظ پاتې کېدى شوی.

له دې نه لویه یأس غورځوونکې منظره به هغه وي؛ چې د طبراني (رحمه الله) په حدیث کې راغلې دي، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: «ځما د امّت ډېر سرې د خپلو ګناهونو له سببه په جهنّم کې لوېږي، او تر هغه پورې چې د الله تعالی اراده وي، هلته به اوسېږي، نو بیا به مشرکین دوى ته طعنې ورکوي چې ستاسې ایمان او توحید تاسې ته څه فائده دررسوله؟ چې تاسې هم نن ځمونږ په شان په دوزخ کې پراته یئ؟ ! نو د دې پیغور له سببه پاك الله به هیڅ یو موحّد په دوزخ کې نه پرېږدي».

د دې فرمايلو څخه وروسته نبي كريم صلى الله عليه وسلم دغه آيت ولوست: ﴿رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ﴾ ګواكې دغه به آخري موقع وي، چې كفار به د خپل د مسلمانېدلو تمنّا كوي.

ذَرْهُمْ يَأْكُلُوا وَيَتَمَتَّعُوا وَيُلْهِهِمُ الْأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ③

پرېږده دوى (اى محمده) چې خوري او ګټې فائدې اخلي، او مشغول كړي دوى اوږد اميد (د ژوندون له ايمان راوړلو)؛ نو ژر ده چې پوه به شي (په عاقبت خپل).

**تفسير:** يعني كله چې هيڅ يو نصيحت پر دوى مؤثر او كارګر نشو؛ نو تاسې زيات له دې نه د دوى په فكر كې مه لوېږئ! بلكه څو ورځې يې هم داسې خوشې كړئ! چې د بهائمو (چارپايانو) په شان وخوري، وڅښي، او په زړه پورې مزې وكړي، او خوندور شي، او د مستقبل په نسبت ښه لوى لوى اميدونه وتړي، عنقريب به داسې وخت راشي چې دغه ګرد حقائق به هلته څرګند شي، او د پخوانيو او وروستنيو ګرد خوړلي او څښلي به له دوى څخه راوځي، لكه چې څه قدر حقيقت يې په دنيا كې د مجاهدينو په لاس وربښكاره شو، او پوره تكميل به يې په آخرت كې كېږي.

وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَعْلُومٌ ④

او نه دى هلاك كړى مونږ له (اهله د) هيڅ كلي مګر خو لپاره (د هلاك) د هغه به يو وخت معلوم وو (ليكلى په لوح محفوظ كې).

**تفسير:** يعنې هومره كلي ښارونه او اقوام چې پخوا له دې نه هلاك كړى شوي دي؛ د الله تعالى په علم كې د هر يوه د هلاكت يو معين وخت وو، چې په هغه كې نه هېره او نه تېرواته او نه غفلت او نه د الله تعالى د وعدې تأخير او تعطيل امكان وو، هر كله چې د كوم قوم ميعاد پوره او د دوى د تعذيب وخت ور ورسېد؛ يو ځلي ګرد سره سپېره او تباه شوي دي.

مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ⑤

نه ړومبى كيږي هيڅ امت له وخته (د هلاك) خپل، او نه (ترې) وروستى كيږي.

**تفسير:** يعنې د مهلكه وو اممو په منځ كې څه تخصيص نشته، بلكه د هر قوم د عروج او زوال يا د موت او حيات لپاره كوم ميعاد او نېټه چې مقرره ده؛ هغه د يوې ريې (ساعت) لپاره هم وړاندې او وروسته كېدى نشي.

وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ ⑥

او ويلې (دغو كفّارو محمد ته) اى هغه سړيه چې نازل كړى شوى دى پر هغه باندې ذكر (قرآن پند په زعم د منكرينو) ! بېشكه ته خامخا لېونى يې.

**تفسير:** د مكې معظمې مشركينو به دغه الفاظ محض د استهزاء او استخفاف په طريقه سره ويل، يعنې «ته له ګردو څخه ور د مخه شوى يې، او د پاك الله له درباره دې قرآن راوړى دى، او نورو ګردو ته احمق او جاهل وايې، بلكه ګردې دنيا ته د وېرې پيغام وركوې، او له هغه سره داسې دعوى هم كوې، چې بالآخر به زه غالب يم، او يو وخت به داسې راشي چې منكرين به له حسرته او ندامته داسې وايي: كاشكې چې مونږ هم مسلمانان واى، دا د كوم عقل او هوش خبرې دي، دا خو ښكاره لېونتوب دى، او دغه شى چې ته يې لولې او اوروې يې؛ د لېونيانو له چتې (بېكاره) او چپوله (ګلډو وډو) له وينا څخه پر ته بل شى نه دى (العياذ بالله).

لَوْ مَا تَأْتِيْنَا بِالْمَلٰٓئِكَةِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۷﴾

ولې نه راولې مونږ ته ملائکې (لپاره د تعذيب او تکذيب ځمونږ په تصديق ستا) که يې ته له صادقانو (رښتينو په دغه دعوى کې).

مَا نُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ إِلَّا بِالْحَقِّ وَمَا كَانُوْٓا إِذًا مُّنْظَرِيْنَ ﴿۸﴾

(نو په ځواب کې الله فرمايي چې) نه نازلوو مونږ ملائکې مګر په حق (حکمت يا عذاب) سره او نه به په دغه وخت کې مهلت ورکړى شي (يعنې د ملائکو د نزول په وخت کې به پر دوى هم في الحال عذاب نازليږي).

تفسير: يعنې د قبول کوونکو لپاره اوس ښايسته ډېرى نښې شته، پاتې شو هغه کسان چې د دوى اراده داسې نه وه چې دغه خبره ومني؛ نو هغوى به يې د پرښتو د راتګ په وخت کې هم نه مني، نو بيا د هغو په نزول څه فائده مرتبيږي؟ الله تعالى پرښتې سم له خپله حکمته سره د کوم صحيح غرض لپاره ليږي، همداسې خوشې چټې (بېکاره) د هغوى تماشا ورښوول خلقو ته مقصود نه وي، عادت الله عموماً داسې جريان لري؛ کله چې د کوم قوم بغاوت او سرکښي له خپله حده تېرى کوي، او د تفهيم او هدايت ګرد مراحل خاتمه مومي؛ نو د پرښتو فوج د دوى د هلاک لپاره ورليږي، نو بيا قطعاً هغه قوم ته مهلت نه ورکول کيږي.

إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴿۹﴾

بېشکه مونږ پخپله نازل کړى دى ذکر (قرآن)، او بېشکه چې مونږ د ده خامخا ساتونکي يو (له زيادت، نقصان او نورو نه).

تفسير: يعنې ستاسې استهزاء او تعنّت، او د قرآن راوړونکي په لوري د جنون نسبت کول پر قرآن عظيم او د قرآن کريم پر حامل قطعاً هيڅ اثر نشي غورځولى، په ياد يې ولرئ چې د دغه قرآن شريف نازلوونکي مونږ يو، او مونږ د دغه قرآن مبارک د هر قسم حفاظت او ساتنې ذمه پر خپله غاړه اخيستې ده، په هغه شان او هيئت سره چې هغه نازل شوى دى، او بې له يوه ادنى تغيير ـ تبديل ـ تحريف او د فتحې، کسرې، ضمّې او نورو د اړولو او راړولو څخه ګرد عالم ته په کمال صحت رسېدلى دى؛ وروسته له دې نه هم رسيږي، د ژبې د فصاحت او بلاغت او د علم او حکمت دقائق هر څومره چې پرمختګ او ترقي وکړي؛ خو د پاک قرآن په صوري او معنوي اعجازو کې به له سره ضعف او انحطاط نه محسوس کيږي.

ډېر قومونه او سلطنتونه به د قرآن په غږ کښېنولو يا ورکولو کې ډېر زيار (کوښښ) وکړي، ليکن د هغه يو ټکى به هم ترې نشي لرې کولى، د عظيم الشان قرآن په نسبت د الله تعالى دغه عظيم الشانه وعده په داسې درستې او صفايي او حيرت غورځوونکې طريقې سره تکميله او پوره شوې ده او پوره کيږي؛ چې د هغه د ليدلو څخه د متعصبو او مغرورو مخالفانو سرونه ښکته شوي دي.

«ميور» وايي: «تر هغه ځايه پورې چې مونږ معلومات لرو، په ګرده دنيا کې هم داسې يو کتاب نشته چې د قرآن پشان په دولسو سوو کلونو کې له هر قسمه تحريفه پاک او سپېځلى پاتې وي».

يو بل اروپايي محقق ليکي: «مونږ په هغه يقين سره قرآن بعينه د محمد صلى الله عليه وسلم د خولې وتلي الفاظ ګڼو، لکه چې مسلمانان يې د الله کلام ګڼي»، واقعات دا راښيي چې پر هره زمانه کې د علماوو داسې يو غفير جم موجود

وو (چې د هغوی تعداد الله ته معلوم دی) او هغوی د دغه قرآن د علومو او مطالبو او غير منقضي (نه ختم کېدونکي) عجائبو حفاظت کړی دی، او کاتبانو د رسم الخط ـ او قاريانو د اداء طرز ـ او حافظانو د ده د الفاظو اوعباراتو داسې حفاظت کړی دی؛ چې د نزول له وخته تر اوسه پورې د هغه يوه فتحه يا کسره يا ضمّه يا نور هم نه دي تبديل شوي، ځينو د قرآن رکوع شمېرلي دي، ځينو د هغه آياتونه حساب کړي دي، ځينو د هغه د حروفو تعداد راښولی دی، حتی چې ځينو د هغه يو يو اعراب او يو يو ټکی هم شمېرلی دی.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ فِي شِيَعِ الْأَوَّلِينَ ۝١٠ وَمَا يَأْتِيهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝١١

او خامخا په تحقيق ليږلي وو مونږ (رسولان) پخوا له تا په ټوليو د پخوانيو (خلقو) کې. او نه به راته هغوی ته هيڅ رسول؛ مګر حال دا چې وو به دوی (د کبره او عناده) چې په هغه پورې به يې مسخرې کولې (لکه چې کوي يې کفّار تا پورې).

تفسير: په دغه مبارک آيت کې ځمونږ پاک رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلم ته تسلي ورکړی شوې ده، چې تاسې د دوی له دغه تکذيب او استهزاء څخه مه خپه کېږئ! دغه کومه نوې پېښه او خبره نه ده، د منکرانو عادت تل همداسې وه، کله چې کوم نبي عليه السلام دوی ته راته؛ نو په هغه به يې مسخرې او ټوکې کولې، کله به يې ورته لېونی ويل، کله به يې خپه کولو او چټي (بېکاره) اوږدې او ساده غوښتنې او مطالبې به يې ترې کولې، فرعون د موسی عليه السلام په نسبت ويلي وو: ﴿إِنَّ رَسُولَكُمُ الَّذِي أُرْسِلَ إِلَيْكُمْ لَمَجْنُونٌ﴾ (۱۹ جزء د الشعراء سورت (۲۷) آيت (۲) رکوع) ﴿فَلَوْلَا أُلْقِيَ عَلَيْهِ أَسْوِرَةٌ مِّن ذَهَبٍ أَوْ جَاءَ مَعَهُ الْمَلَائِكَةُ مُقْتَرِنِينَ﴾ (۲۵ جزء د الزخرف سورت (۵۳) آيت (۵) رکوع).

كَذَٰلِكَ نَسْلُكُهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ۝١٢

هم داسې (لکه چې ننه ايستلی وو مونږ تمسخر د انبياوو په زړونو د پخوانيو کفّارو کې)؛ ننه باسو دغه (تمسخر) په زړونو د مجرمينو (کفّارو د زمانې ستاسې کې هم).

تفسير: هغه خلق چې د جرائمو له ارتکابه مخ نه اړوي، مونږ د دوی په زړونو کې هم داسې د تکذيب او استهزاء عادت ټينګ کړی دی، لکه چې د دوی زړونو ته د غوږونو له لارې د الله تعالى وحي ورځي، نو له هغه سره يو ځای تکذيب هم ورلوېږي.

لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَقَدْ خَلَتْ سُنَّةُ الْأَوَّلِينَ ۝١٣

چې ايمان نه راوړي په دغه (نبي او قرآن) او په تحقيق تېره شوې ده طريقه (عادت د الله په اهلاک) د پخوانيو (کفارو چې تکذيب به يې کولو د رسولانو خپلو).

وَلَوْ فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا مِّنَ السَّمَاءِ فَظَلُّوا فِيهِ يَعْرُجُونَ ۝١٤ لَقَالُوا إِنَّمَا سُكِّرَتْ أَبْصَارُنَا بَلْ نَحْنُ قَوْمٌ
مَّسْحُورُونَ ۝١٥

او که پرانستلې وی مونږ پر دغو (غوښتونکو د معجزو په مقتضی خپله) کومه دروازه له اسمانه؛ پس تل ګرځېدلي وی دوی په هغه (دروازه) کې چې تل ختل (اسمان ته)؛ نو خامخا به يې ويلي وو (له ډېره عناده) بېشکه همدا خبره ده چې تړلې شوي دي سترګې ځمونږ بلکه مونږ يو قوم يو چې جادو راباندې کړی دی دوی.

**تفسیر:** یعنې د پرښتو نزول خو دومره عجیب نه دی، که مونږ د اسمان ورونه خلاص کړو، او پرښتې پرې وخېژوو، او ګرده ورځ دوی په همدې ختلو کې لګیا اوسي؛ خو بیا هم دغه ضد کوونکي او معاند خلق یې نه تسلیموي، او په دغه وخت کې به داسې وایي چې: پر مونږ باندې نظر بندي یا جادو شوی دی، ښایي په ابتداء کې یې نظر بندي وګڼي، او بیا یې لوی جادو وبولي.

وَلَقَدْ جَعَلْنَا فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَزَيَّنَّاهَا لِلنَّاظِرِينَ ﴿١٦﴾

او خامخا په تحقیق پیدا کړي دي مونږ په اسمان کې (دولس) برجونه، او ښایسته کړی دی مونږ دغه (اسمان په ستوریو سره) لپاره د کتونکیو (چې عبرت ترې واخلي).

**تفسیر:** ځینې له بروجو څخه دلته لوی لوی ستوري مرادوي، ځینې ترې د شمس او قمر منازل مرادوي، ځینې وایي چې بروج هغه اسماني کلاوې (قلعې) دي، چې په هغو کې د پرښتو ډلې پیرې ورکوي.

﴿وَزَيَّنَّاهَا لِلنَّاظِرِينَ﴾ یعنې مونږ پخپل بالغه حکمت او قاهره قدرت اسمان ته په ستوریو سره زینت ورکړی دی، د شپې چې وریځې او دوړې او غبار او دمه نه وي؛ نو د ستوریو د دغو بېشمارو واښکیو له کتلو څخه انسان په څه اندازه خوښ او محظوظیږي، او د آسمان د ننداري کوونکي په نظر څومره ښایسته او له عظمته ډک معلومیږي، او غور او فکر کوونکي ته په هغه کې د الله تعالی د کامل صنعت، لوی حکمت، مطلقه وحدانیت څومره نښې، دلائل موندلی کیږي.

وَحَفِظْنَاهَا مِنْ كُلِّ شَيْطَانٍ رَجِيمٍ ﴿١٧﴾ إِلَّا مَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ مُبِينٌ ﴿١٨﴾

او ساتلی دی مونږ دغه (اسمان) له هر شیطانه ویشتلي شوي (په شغلو سره). لیکن هغه (شیطان ختونکي اسمان ته) چې غلا کړي (خبره) اورېدلې شوې (له ملائکو)؛ پس ورپسې شي ستوري ښکاره (روښانه نو ویې سوځوي پخپلې لمبې سره).

**تفسیر:** یعنې په اسمانونو کې د شیاطینو هیڅ عمل او مداخله نه چلیږي، بلکه د محمد صلی الله علیه وسلم د بعثت راهیسې د دوی ګزر او تېرېده هم اسمان ته ممنوع دي، اوس د دوی انتهایي کوښښ په دې کې دی چې یوه شیطاني سلسله قائمه کړي، او اسمان ته ځان نژدې ورسوي، او د ملکوتو له عالمه سره نژدې پر غیبیه وو اخباراتو اطلاعات حاصل کړي، دلته هم د پرښتو پیرې درولې شوي دي، چې کله شیاطین داسې کوښښ وکړي؛ نو له پاسه د اور په لمبو وویشتلی شي.

له قرآني نصوصو او د نبوي احادیثو څخه معلومیږي چې د تکویني امورو په نسبت کله چې په اسمانونو کې د کومې فیصلې اعلان کیږي، او پاک الله په دغه سلسله کې پرښتو ته وحي لیږي؛ نو هغه اعلان په یو خاص کیفیت له پاسه تر ښکته پورې درجه په درجه راځي، تر څو چې د دنیا اسمان ته ورسیږي.

د «بخاري شریف» د یوه روایته سره مطابق په «عنان» وریځو کې پرښتې د هغه مذاکره کوي، او شیاطین زیار (کوښښ) کوي، چې د دغو معاملاتو په متعلق غیبي معلومات حاصل کړي.

همغسې چې نن ورځ کوم پیغام د بېسیمو (وائرلس) ټلیګرافو په ذریعه لیږلی کیږي، او له هغه څخه خلق په لاره کې د جذب کولو او اخیستلو تدبیر کوي؛ نو ناڅاپه له پاسه بم (شهاب ثاقب) پرې لویږي، او د دغو غیبي پیغاماتو غلا کوونکی مجروح یا هلاکوي، په دغه کش او کوک (منډو رامنډو) کې چې په کومه یوه یا نیمه خبره باندې شیطانان پوهه حاصلوي؛ نو دوی د هلاکېدو څخه د مخه په ډېر عجلت او تلوار سره یې نورو شیاطینو ته وررسوي، او هغه یې

خپلو نورو انساني دوستانو ته د وررسولو کوښښ کوي، کاهنان د همدغه نیمګړې او ناتمامې خبرې څخه په سلهاوو دروغ له خپله ځانه جوړوي، او په عوامو کې یې د غیبي اخبارو په نامه خوروي، کله چې یوه نیمه خبره یې رښتیا شي؛ نو د دوی معتقدان هغه د دوی د رښتینې په ثبوت کې وروړاندې کوي، او له هغه سلهاوو خبرو څخه چې دروغ ثابتیږي؛ اغماض او تغافل کوي.

وَالْأَرْضَ مَدَدْنٰهَا وَأَلْقَيْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ وَأَنْۢبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَّوْزُونٍ ﴿١٩﴾ وَجَعَلْنَا لَكُمْ فِيهَا مَعَايِشَ وَمَنْ لَّسْتُمْ لَهٗ بِرٰزِقِينَ ﴿٢٠﴾

او ځمکه غځولې (غوړولې) ده مونږ دغه، او اېښوولې مونږ په دغه (ځمکه) کې غرونه (درانه محکم لکه میخونه)، او زرغون کړي دي مونږ په کې له هر شي اندازه کړی شوي څخه. او پیدا کړي مو دي تاسې ته په دغه (ځمکه) کې (اسباب د) معیشت او هغه شیان چې نه یئ تاسې هغوی ته رزق روزي ورکوونکي (لکه عیال، اولاد، حیوانات او نور، او مونږ یې رازق یو).

وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا عِنْدَنَا خَزَآئِنُهٗ وَمَا نُنَزِّلُهٗٓ إِلَّا بِقَدَرٍ مَّعْلُومٍ ﴿٢١﴾

او نشته هیڅ څیز مګر په نزد ځمونږ دي خزانې د هغه، او نه نازلوو (نه رالیږو) هغه شی مګر په اندازې معلومې سره (نه لږ نه ډېر، سم ځمونږ له حکمت او مصلحت سره).

تفسیر: یعنې هر هغه څیز په هر مقدار سره چې الله تعالی اراده وفرمایي؛ پیدا کوي یې، نه څه ربړ (زحمت) او تکلیف ورپېښیږي، او نه په کې سترې کیږي، له یوه لوري کله چې اراده وفرمایي؛ سم د لاسه هغه شیان موجودیږي، ګواکې د ګردو شیانو خزانه د الله تعالی لا محدوده قدرت دی، چې په هغه سره هر څیز سم له حکمته د یوه معین نظام لاندې په ټاکلې اندازې بې له تزییده (زیاتي) او تنقیصه (کمي) پرله پسې راوځي او راځي.

وَأَرْسَلْنَا الرِّيٰحَ لَوٰقِحَ فَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَأَسْقَيْنٰكُمُوهُ وَمَآ أَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِينَ ﴿٢٢﴾

او رالیږلي دي مونږ بادونه بلاربوونکي (ونو او وریځو لره یا پخپله بلاربه) پس نازله کړې (لېږلې) ده مونږ له اسمان (له وریځو) څخه اوبه؛ نو وڅښولې مونږ تاسې ته دغه اوبه، او نه یئ تاسې دغو اوبو لره خزانه کوونکي (ساتونکي بلکه مونږ یې درساتو).

تفسیر: یعنې اورونکې هواوې درنې درنې وریځې له اوبو څخه ډکې راولي، چې له هغه ځنې اوبه وریږي، او په ویالو، چینو، کوهیو او نورو کې سره ټولیږي، او ستاسې په کار درځي، که د الله تعالی اراده وی؛ نو هغه به یې د څښلو وړ نه وې پریښې، لیکن ده د خپلې مهرباني خومره خوږې او لطیفې اوبه ستاسې د دولسو میاشتو د ضروریاتو لپاره د ځمکې په مساماتو کې جمع کړې دي !.

﴿وَمَآ أَنْتُمْ لَهٗ بِخٰزِنِينَ﴾ «او نه یئ تاسې دغو اوبو لره خزانه کوونکي» ساتونکي، بلکه مونږ یې درساتو، یعنې نه د پاسني اوریا (باران) خزاین ستاسې په قبضه کې دي، او نه د لاندنې چینې او کوهي مخازن ستاسې په اختیار کې دي.

وَإِنَّا لَنَحْنُ نُحْيٖ وَنُمِيتُ وَنَحْنُ الْوٰرِثُونَ ﴿٢٣﴾

او بېشکه مونږ خامخا همدا مونږ ژوندي کوو او هم وژل کوو، او همدا مونږ وارث باقي پاتې کیدونکي یو (پس له فنا د عالمیانو هم).

تفسير: يعنې دنيا به فناء کيږي، او يو الله تعالى به پخپلو کاملو صفاتو سره باقي پاتې کيږي، شاه صاحب ليکي: «هر څوک مري، او د هغه ګټلي او اموال د پاک الله په لاس کې پاتې کيږي».

وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَقْدِمِينَ مِنكُمْ وَلَقَدْ عَلِمْنَا الْمُسْتَأْخِرِينَ ﴿۲۴﴾

او خامخا په تحقيق معلوم دي مونږ ته رومبني له تاسې، او خامخا په تحقيق معلوم دي مونږ ته وروستني خلق.

تفسير: يعنې د پخوانيو او د وروستنيو د هيڅ يوه شخص يا د هغه اعمال څمونږ له علمي احاطې څخه خارج نه دي، الله تعالى ته لـه ازله د هـر شي د تفصيل علم شته، او سم له هغه سره د دنيا ګردې پېښې او واقعات څرګنديږي (ښکاريږي)، او سم له هغه سره به په آخرت کې له ګردو مخلوقاتو سره عدل او انصاف کوي.

وَإِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَحْشُرُهُمْ ۚ إِنَّهُ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ﴿۲۵﴾

او بېشکه رب ستا همدی به راټولوي دوی (په محشر کې لپاره د جزا)، بېشکه چې دغه (الله) ښه حکمت والا دی، ښه علم والا دی.

تفسير: يعنې هره ذره هم د الله تعالى په علم کې شته، هر کله چې د ده علم او حکمت مقتضي شي؛ نو ګرد به په يوه وخت کې سره ټولوي، او په دغه کې هيڅ اشکال نشته، د قبر په خاورو او د ځناورانو په ګېډو کې، د سمندرو په ژورو کې، او په فضاء کې او هوا کې، الغرض په هر ځای کې هر څيز او د هغه هر جزء چې وي؛ هغه پخپل محيط علم او کامله قدرت سره ټولوي.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿۲۶﴾

او خامخا په تحقيق پيدا کړی دی مونږ انسان (آدم) له وچې خټې چې کړنګېدلې (لکه کودړې چې وي) له تورې خټې خوسا کړی شوې.

تفسير: د آفاقيه وو آيتونو او دلائلو څخه وروسته د انفسيه وو آيتونو او دلائلو بيان فرمايي، چې د هغه په ضمن کې ښايي دغه تنبيه هم مقصود وي؛ چې د منبع الکمالاتو هغه ذات چې تاسې يې په داسې يوه عجيبه طريقه سره رومبی ځلې پيدا کړئ؛ نو بيا ستاسې پيدا کول او په يوه ميدان کې مو سره راټولول هغه ته څه اشکال لري؟ .

تنبيه: د آدم د پيدا کولو په نسبت دلته يې دوه الفاظ وفرمايل: (۱): ﴿صَلْصَالٍ﴾: يعنې هغه کړنګېدونکې خټه چې د اور د پخېدلو څخه دغه کيفيت په کې پيدا کيږي، چې هم دغه يې په بل ځای کې ﴿كَالْفَخَّارِ﴾ فرمايلی دی، (۲): ﴿حَمَإٍ مَّسْنُونٍ﴾: يعنې هغه خوسا شوې خټه چې ترې بدبويي خيژي، داسې خيال کيږي چې رومبی به يې له خوسا شوې خټې څخه د (آدم) کالبوت تيار کړی وي، او بيا به يې وچ کړی وي، او بيا به يې داسې پوخ کړی وي، چې ترې کړنګ ختلو، بيا وروسته له مختلفو تطوراتو دغې درجې ته رسېدلی وي چې انساني روح په کې وپوکل شي.

وَالْجَانَّ خَلَقْنَاهُ مِن قَبْلُ مِن نَّارِ السَّمُومِ ﴿۲۷﴾

او جان (پلار د پيريانو) پيدا کړی دی مونږ هغه پخوا له (انسانه) له اوره بې لوګي څخه.

تفسير: يعنې لطيف اور او هوا سره ګډه کما قال الله تعالى: ﴿وَخَلَقَ الْجَانَّ مِن مَّارِجٍ مِّن نَّارٍ﴾ (۲۷ جزء د الرحمن سورت (۱۵) آيت اوله رکوع)، د انسانانو پلار له داسې يو مادې څخه پيدا کړی شوی دی، چې د خاورو عنصر په کې غالب دی،

او د پیریانو پلار له هسې یوې مادې څخه روغ شوی دی چې په هغه کې د اور عنصر غلبه درلوده، چې (ابلیس) هم په همدغه قسم کې وو.

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي خَٰلِقٌۢ بَشَرًا مِّن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٢٨﴾ فَإِذَا سَوَّيْتُهُۥ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِى فَقَعُوا۟ لَهُۥ سَٰجِدِينَ ﴿٢٩﴾

او (یاد کړه) هغه وخت چې وویل رب ستا ملائکو ته چې بېشکه زه پیدا کوونکی یم د یوه بشر له کودرو کړنګېدونکو وچو څخه (چې جوړ شوي دي) له تورې ختې خوسا شوې څخه. نو کله چې برابر مې کړ دغه او پو مې کړ په ده کې له روح خپل (او دی پرې ژوندی شو)؛ نو پرېوځئ تاسې ده ته په دې حال کې چې سجده کوونکي يئ.

**تفسیر:** یعنې د آدم علیه السلام کالبوت به جوړ کړم، او د دې قابل به یې وګرځوم چې انساني روح پکی و پوکل شي، چې په هغه له یو جماد څخه انسان جوړېږي، نو په دغه وخت کې به تاسې ته حکم درکول کېږي چې ګرد ورته سجده کړئ.

**تنبیه:** پاک الله چې د «روح» (سا) اضافت پخپل طرف وکړ، دغه محض تشریف او تکریم او د انساني روح د امتیاز د ښکاره کولو لپاره دی.

فَسَجَدَ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴿٣٠﴾ إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبَىٰٓ أَن يَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٣١﴾ قَالَ يَٰٓإِبْلِيسُ مَا لَكَ أَلَّا تَكُونَ مَعَ ٱلسَّٰجِدِينَ ﴿٣٢﴾ قَالَ لَمْ أَكُن لِّأَسْجُدَ لِبَشَرٍ خَلَقْتَهُۥ مِن صَلْصَٰلٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ ﴿٣٣﴾

نو سجده وکړه ملائکو ټولو د دوی تمامو (یو کرت). مګر خو ابلیس، (چې له ډېره کبره) منع یې راوړه له دې نه چې شي دی سره له سجده کوونکو (آدم ته، نو) وفرمایل (الله) ای ابلیسه ! څه (عذر) وو تا لره (په دې کې) چې نه شوې ته سره له سجده کوونکیو؟. وویل (ابلیس) چې نه یم زه (لایق د دې کار) چې سجده وکړم (داسې) بشر ته چې پیدا کړی تا له کودرو کړنګېدونکیو وچ (چې جوړ شوی دی) له تورې ختې خوسا شوې.

**تفسیر:** یعنې شیطان وویل: آدم علیه السلام پیدا شوی دی د «خسیس» شي نه چې خاورې دي، او زه پیدا یم له «شریف» شي نه چې اور دی، نو روحاني لطیف شیز جسماني کثیف شیز ته څرنګه سجده وکړي؟.

قَالَ فَٱخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿٣٤﴾

نو وفرمایل (الله ابلیس ته) پس ووځه ته له دې ځایه، نو بېشکه ته رټلی شوی یې.

**تفسیر:** یعنې له جنته، یا له آسمانه، یا د ملائکو له ټولي، یا له دغه عالي مقامه چې تر اوسه پورې ته هغه ځای ته رسېدلی وې (څه ووځه، نو بېشکه ته رټلی شوی یې)، یعنې مردود او مطرود یې، یا به «رجیم» اشاره وي هغه طرف ته چې پخوا تېر شو، چې په «شهاب» د ستورې په لمبو شیاطین ویشتلی شي، ګواکې په دغه لفظ سره د هغې شبهې جواب ورکړی شوی دی، چې ستا انکار له سجدې څخه د عنصري شرف په اعتبار نه دی، فضل او شرف خو خاص هغه چا لره دی چې پاک الله ورته سرلوړي او افتخار ورکړي، هو ! ستا د دغې اباء او استکبار منشأ خو هغه شقاوت او بدبختي ده، چې ستا د بد استعداد لامله په تا کې مضمر او مقدر دی.

وَّإِنَّ عَلَيْكَ اللَّعْنَةَ إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ ﴿٣٥﴾

او بېشکه پر تا باندې دی (ای شیطانه !) لعنت تر ورځې د جزاء پورې.

تفسیر: یعنې ای شیطانه ! د قیامت تر ورځې پورې د الله تعالی له رحمته لرېوالی، او د بندګانو له لوري به هم لعنت درباندې وریږي، او په دغه ترتیب سره آناً فاناً ته له خیره لرې کېږې، کله چې تر قیامته پورې به د خیر توفیق ونه لرې، او وروسته له هغه بله موقع له سره نشته، ځکه چې په آخرت کې به هر سړی همغه ریبي چې دلته یې کرلي وي، یا داسې ووایه چې: د قیامت تر ورځې پورې به لعنتونه پرې وریږي، او وروسته له هغه به په بېشمارو اقسامو عذابونو کې اخته کیږي، یا به د ﴿إِلَىٰ يَوْمِ الدِّينِ﴾ لفظ له دوامه کنایه وي.

قَالَ رَبِّ فَأَنظِرْنِي إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿٣٦﴾ قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنظَرِينَ ﴿٣٧﴾ إِلَىٰ يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿٣٨﴾

وویل (ابلیس) ای ربه ځما ! پس مهلت راکړه ماته تر هغې ورځې پورې چې بیا پورته کولی شي (خلق) له قبورو. وفرمایل (الله) نو بېشکه چې ته له مهلت ورکړیو شویو څخه یې. تر (هغې ورځې) د وخت معلومه (فناء د مخلوقاتو) پورې.

تفسیر: د دغې واقعې تفصیل په «البقره» او «الأعراف» په سورتونو کې تېر شوی دی، او مونږ د «الأعراف» په دویمه رکوع کې د دې په اجزاوو څه کلام هم کړی دی، هغه دې هلته بیا ولوستل شي.

قَالَ رَبِّ بِمَا أَغْوَيْتَنِي لَأُزَيِّنَنَّ لَهُمْ فِي الْأَرْضِ وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٣٩﴾ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿٤٠﴾

وویل (ابلیس) ای ربه ځما ! قسم دی ما لره په سبب ګمراه کولو ستا ما لره چې خامخا ښایسته به کړم هرومرو (خامخا) (ګناهونه) دوی ته په ځمکه کې، او خامخا زه به ګمراهان کړم هرومرو دوی ټول. مګر خو هغه بندګان ستا له دوی څخه چې خالص کړی شوي دي (له ګناهونو).

تفسیر: یعنې انسانانو ته به د دنیا پسرلی وربښکاره کوم، او د نفساني غوښتنې په حال کې به یې راګېروم، او ستا د مخصوصو او منتخبو بندګانو څخه ماسوا نور ګرد به له لارې څخه بې لارې کوم، لعین ابلیس دغه کلمات د انتقام په جوش کې ویلي دي، چې مطلب یې داسې وو، چې زه خو ستا هیڅ شی نشم درخرابولی، لیکن په هغه سبب چې زه لرې غورځولی شوی یم، د خپل قدرت سره موافق د ده تر نسلونو پورې به هم خپل انتقام اخلم، د «الأعراف» په سورت کې په دغه موضوع مونږ څه لیکلي دي، هغه دې بیا ولوستل شي !.

قَالَ هَٰذَا صِرَاطٌ عَلَيَّ مُسْتَقِيمٌ ﴿٤١﴾

نو بیا وفرمایل (الله) دغه (اخلاص په عمل کې) لاره ده تر ما پورې برابره.

تفسیر: یعنې بېشکه د بندګی او اخلاص لاره سمه برابره تر ما پورې رسیږي، او همدغه ځما صافه او سمه لاره ده چې په کې هیڅ لوړه (پورته) ژوره (ښکته) او کاږه واږه نشته، او هر چا چې د عُبودیت او اخلاص طریقه اختیار کړه؛ همغه به د شیطان لعین له تسلّط نه مأمون پاتې کیږي، او هر څوک چې د هغه ملعون متابعت کوي، له هغه سره به دوزخ ته ځي.

﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَانٌ إِلَّا مَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْغَاوِينَ ﴿٤٢﴾﴾

بېشکه خاص بندګان څما چې دي؛ نشته تاته پر دوی هیڅ تسلّط (او غلبه په ګمراه کولو دهغوی کې) مګر هغه څوک چې متابعت کوي ستا له ګمراهانو (چې ستا زور پرې رسیږي).

تفسیر: یعنې بېشکه پر هغه ښو غورو او منتخبو بندګانو چې د هغو ذکر پاس وشو؛ ستا هیڅ زور نه چلیږي، یا به یې دا مطلب وي چې: پر هیڅ بنده به ته په زور او زبردستی څه کار نشې کولی، هو ! هر هغه څوک چې پخپله ګمراه او بې لارې شي، او د خپل جهله او حماقته تا پسې رهي (روان) شي؛ هغه پخپل اختیار خپل ځان خراب او بربادوي، لکه چې په (۱۳ جزء د ابراهیم سورت په (۲۲) آیت (۴) رکوع) کې پخپله د شیطان مقوله تېره شوه: ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا أَن دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي﴾.

﴿وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمَوْعِدُهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٤٣﴾ لَهَا سَبْعَةُ أَبْوَابٍ لِّكُلِّ بَابٍ مِّنْهُمْ جُزْءٌ مَّقْسُومٌ ﴿٤٤﴾﴾

او بېشکه چې جهنم (دوزخ) خامخا ځای د وعدې د دغو (تابعانو ستا) دی د ټولو. چې دي دې (دوزخ) لره اوه دروازې، لپاره د هرې دروازې له دې (ګمراهانو) څخه یوه برخه به وي قسمت (او تعیین) کړی شوي.

تفسیر: ځینو اسلافو له ﴿سَبْعَةُ أَبْوَابٍ﴾ څخه د دوزخ اوه طبقې لاندې او باندې مراد کړي دي، لکه چې ابن عباس رضي الله تعالی عنه د هغوی نومونه داسې راښوولي دي: (۱): جهنّم، (۲): سعیر، (۳): لَظی، (۴): حُطمه، (۵): سقر، (۶): جحیم، (۷) هاویه، او د جهنّم د لفظ اطلاق پر یوې خاصې طبقې او پر ګردو طبقاتو پر دواړو کیږي، د ځینو په نزد ترې هغه اووه دروازې مراد دي، چې په هغو کې به بېل بېل مجرمان سره ننوځي، والله أعلم.

شاه صاحب لیکي: «لکه چې جنّت اته دروازې لري، او په نېک عملو کسانو ویشلې شوي دي؛ همداسې د دوزخ دغه اووه ورونه هم پر بد عملانو ویشلې شوي دي، ښایي د جنّت یو ور څکه زیات وي؛ چې ځینې موحّدین د الله په خاص فضل او مرحمت سره به بې له عمله په جنّت کې داخلیږي، باقي په عمل کې دروازې سره برابرې دي.

﴿إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿٤٥﴾ ادْخُلُوهَا بِسَلَامٍ آمِنِينَ ﴿٤٦﴾﴾

بېشکه ځان ساتونکي (له متابعت د ابلیس) په جنتونو کې به وي او په چینو کې به وي. (او وبه ویلی شي دوی ته) ننوځئ دغو جنتونو ته په سلامتیٔ له هره آفته په دغه حال کې چې په امن به یئ (له زواله د نعمت).

﴿وَنَزَعْنَا مَا فِي صُدُورِهِم مِّنْ غِلٍّ إِخْوَانًا عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ ﴿٤٧﴾﴾

او وبه باسو (لرې به کړو) هر هغه څه چې په زړونو د دغو (جنتیانو) کې دی له کینې څخه، حال دا چې (لکه) ورونه به وي، سره ناست به وي پر تختونو (د زرو چړاو په جواهرو) مخامخ یو بل ته.

تفسیر: یعنې وروسته د جنت د رسېدلو څخه په اهل الجنت کې به یو تر بله هغه پخواني کدورتونه به له سره نه پاتې کیږي، او له ګردو مکدرو (خیرنو) شیانو څخه به دوی پاکیږي، او وروسته له هغه چې په جنت کې داخلیږي، نه به هلته یو پر بل حسد او کینه کوي، بلکه ګرد لکه ورونه او خوارډه ملګري په انتهایي محبّت او الفت سره اوسیږي، او هر یو به د یو بل د لیدلو څخه د ډېر زیات مسروریت او محظوظیت احساس کوي.

لَا يَمَسُّهُمْ فِيهَا نَصَبٌ وَمَا هُمْ مِنْهَا بِمُخْرَجِينَ ﴿۴۸﴾

نه به رسیږي دغو (جنتیانو) ته په دغه (جنت) کې هیڅ قدر تکلیف او نه به وي دوی له دغه (جنته) ایستلي شوي هیڅېرې.

تفسیر: په حدیث کې دي چې جنتیانو ته به وویل شي: ای اهل الجنت ! اوس تاسې ته دغه انعام دی چې تل روغ رمټ او خوشاله اوسېږئ، نه به له رنځورۍ څخه څه ربړ (تکلیف) او زحمت درپیښیږي، او نه به له موت او د هغه د لوازمو څخه څه کلفت در وړاندې کیږي، بلکه تل ژوندي آرام او خوشاله اوسېږئ ! او له سره د سفر په تکلیف به نه مقابل کېږئ.

نَبِّئْ عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ ﴿۴۹﴾ وَأَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الْأَلِيمُ ﴿۵۰﴾

خبر کړه (ای محمده !) بندګان څما چې بېشکه همدا زه ښه بخښونکی (د خطیّاتو) ډېر رحم کوونکی یم. او (بل په دې چې) بېشکه عذاب څما همدغه عذاب ډېر دردناک دی.

تفسیر: د مجرمینو او متقینو خاتمه او انجام یې بېل بېل سره بیان وفرمایل، او دلته یې تنبیه کړې ده، چې په هر صورت کې د الله تعالی د یوه نه یوه صفت او شان ظهور دی، هیڅ شبهه نشته چې الله تعالی اصلاً پر خپلو ګردو مخلوقو اراده لري چې بخشش او مهرباني وکړي، او په حقیقت کې اصلي مهرباني د همده ده، د دنیا ګردې مهربانی د ده د مهربانیو یوه پلوشه او تجلي ده، لیکن هغه سړی چې له خپل شرارت او بدکارۍ څخه پر خپل ځان د ده د بخشش او مهربانۍ ورونه بندوي؛ نو بیا د هغه سزا هم دومره سخته ده، چې د هغې مخه هیڅوک نشي نیولی.

وَنَبِّئْهُمْ عَنْ ضَيْفِ إِبْرَاهِيمَ ﴿۵۱﴾

او خبردار کړه دوی له (احواله د) مېلمنو د ابراهیم څخه (چې څو پرښتې وې).

تفسیر: مېلمه یې ځکه وفرمایه، چې ابراهیم علیه السلام په ابتداء کې د هغو په نسبت د مېلمنو خیال فرمایلی وو، خو وروسته ورښکاره شوه چې دوی پرښتې دي.

إِذْ دَخَلُوا عَلَيْهِ فَقَالُوا سَلَامًا قَالَ إِنَّا مِنْكُمْ وَجِلُونَ ﴿۵۲﴾

کله چې ننوتلې دغه (پرښتې) پر ده (ابراهیم)؛ نو وویل دوی (سلام اچوو مونږ په تا) په سلام اچولو سره، نو وویل (ابراهیم کله چې دوی ډوډۍ ونه خوړه): بېشکه مونږ له تاسې څخه وېرېدونکي یو.

تفسیر: په بل ځای کې یې فرمایلي دي: ﴿وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً﴾ یعني وېره یې په زړه کې پټه کړه، نو ویل کیږي چې په ابتداء کې یې د هغې وېرې په پټولو کې کوښښ وکړ، او بالآخر یې ونشوه ساتلی، او په ژبه یې هم ورظاهره کړه.

یا به یې مطلب داسې وي؛ چې سره د هغې د پټولو، د خوف آثار د ده په څېره او نورو کې داسې څرګند (ښکاره) وو؛ چې ګواکې د حال په ژبه سره به یې ویل، چې زه خو له تاسې څخه ویرېږم، دغه وېره د څه لامله وه؟ د هغه تفصیل او د دغې واقعې په نورو اجزاوو کوم کلام چې شوی دی؛ هغه ګردې ښایي چې بیا په (۱۲ جزء د هود علیه السلام د سورت په (۷) رکوع) کې ولوستل شي !.

قَالُوا لَا تَوْجَلْ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ ﴿٥٣﴾

نو وويل (ملائكو) مه ويرېږه ! بېشكه چې مونږ زېرى كوو تاته په هلك ډېر پوه هوښيار سره (كله چې بالغ شي).

**تفسير:** يعني د ويرېدلو هيڅ ضرورت نشته، بلكه د خوښۍ ځاى دى چې په دغه زوړوالي كې مونږ تاسې ته د الله تعالى له جانبه د اولاد زېرى دركوو، اولاد هم څرنګه؟ هلك ! چې ډېر هوښيار لوى عالم دى، چې د نبوّت پر علومو او د نبوّت پر منصب فائزېږي: ﴿وَبَشَّرْنَٰهُ بِإِسْحَٰقَ نَبِيًّا مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ﴾ (۲۳ جزء د الصافات سورت (۱۱۲) آيت (۳) ركوع).

قَالَ أَبَشَّرْتُمُونِي عَلَىٰٓ أَن مَّسَّنِيَ ٱلْكِبَرُ فَبِمَ تُبَشِّرُونَ ﴿٥٤﴾

وويل (ابراهيم) آيا زېرى راكوئ ماته (اى پرښتو په ولد سره) سره د دې چې رسېدلى دى ماته زوړوالى؛ نو په كومه وجه تاسې زېرى راكوئ؟ .

**تفسير:** كله چې په غير متوقّع او فوق العاده ډول سره دغه زېرى يې واورېد؛ نو خپل زوړتوب ته يې كتلې دغه خبره څه عجيبه او غريبه ورڅرګنده (ښكاره) شوه، دغه د انساني طبيعت خاصه ده، كله چې انسان ته كومه ښه فوق التصور او خلاف التوقّع خبره يو ناڅاپه ورسيږي؛ نو سره له باور او يقين كولو د هغه تحقيق او تفتيش او تعقيب په ډېر ښه ډول سره كوي، او د هغه په څېړنه كې د تعجّب لهجه اختياروي، څو خبر وركوونكي په پوره تاكيد او تصريح سره خپله خبره او زېرى بيا په ښه ډول سره تكرار كړي، او دى يې په ښه ځير سره بيا هم واوري، چې په هغه كې نه د هيڅ قسم ابهام او غلط فهمۍ احتمال، او نه د تأويل او التباس جنجال پاتې شي، ګواكې د تعجب له ښكارولو څخه د بشارت ښه واضح كول او پخول او د اورېدلو له تكراره نوى لذت حاصلول مقصود وي.

قَالُوا بَشَّرْنَٰكَ بِٱلْحَقِّ فَلَا تَكُن مِّنَ ٱلْقَٰنِطِينَ ﴿٥٥﴾ قَالَ وَمَن يَقْنَطُ مِن رَّحْمَةِ رَبِّهِۦٓ إِلَّا ٱلضَّآلُّونَ ﴿٥٦﴾

وويل (ملائكو ابراهيم ته) چې زېرى كړى دى مونږ تاته په حقه (په رښتيا) سره، نو مه كېږه ته له جملې د نااميدانو څخه. وويل (ابراهيم چې زه نه يم نااميده) او څوك دي؟ چې نااميده كيږي به له رحمته د رب خپل (نه نااميده كيږي هيڅوك) مګر خو ګمراهان (كافران).

**تفسير:** يعني د الله تعالى له رحمته خو عام مسلمانان هم نشي نااميده كېدى، نو انبياوو عليهم السلام ته به (معاذ الله) څرنګه له هغه تردّد پيښېږي؟ د عاديه وو اسبابو او د خپل موجوده حالت په اعتبار دغه يو عجيب شى رامعلوم شو، او د هغه په نسبت مې د تعجّب اظهار وكړ، چې د پاك الله په قدرت اوس په دغه زوړوالي كې به زه د اولاد پلار كېږم؟، شاه صاحب ليكي: «له عذابه د الله نه ويرېدل او د الله تعالى له فضله نااميده كېدل دواړه د كفر خبرې دي».

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا ٱلْمُرْسَلُونَ ﴿٥٧﴾

وويل (ابراهيم) نو نور څه مقصود دى ستاسې (برسېره پر دې زيري) اى راليږلي شويو (پرښتو له الله نه، او چېرته ځئ؟).

**تفسير:** يعني آيا محض تاسې د همدغه بشارت اورولو لپاره ليږلي شوي يئ؟ يا په بل كوم مهم كار هم مامور شوي يئ؟ اغلباً له قرائنو څخه به ابراهيم عليه السلام پوهېدلى وي؛ چې دوى د كوم بل غټ كار لپاره هم راغلي دي.

قَالُوٓا۟ إِنَّآ أُرْسِلْنَآ إِلَىٰ قَوْمٍ مُّجْرِمِينَ ﴿٥٨﴾ إِلَّآ ءَالَ لُوطٍ إِنَّا لَمُنَجُّوهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٥٩﴾ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَآ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَـٰبِرِينَ ﴿٦٠﴾

نو وويل (ملائکو) چې بېشکه مونږ رالیږلي شوي یو هغه قوم (د لوط علیه السلام) ته چې مجرمان (کافران) دي. مګر آل د لوط چې بېشکه هرومرو مونږ نجات ورکوونکي ساتونکي یو د دوی د ټولو (له عذابه). مګر ښځه د دغه (لوط) چې مقدّره مقرره کړې وه مونږ (په حکم د الله سره) چې بېشکه دا له بېرته پاتې کیدونکیو ده (په معذّبینو کې).

**تفسیر:** یعنې دغه ښځه به له نورو کفّارو سره په عذاب کې مبتلا کیږي.

**تنبیه:** ظاهر خو همدغه دی چې: ﴿قَدَّرْنَآ إِنَّهَا لَمِنَ ٱلْغَـٰبِرِينَ﴾ د هغو ملائکو مقوله ده چې سره له عذابه راغلې وې، کله چې دوی د قضاء او قدر د فیصلې نافذ کولو لپاره په رسمي ډول سره راغلي وې؛ نو ځکه د تقدیر نسبت یې نیابتاً پخپل طرف وکړ، او ممکن دي چې دغه ﴿قَدَّرْنَآ﴾ الآیة ـ د الله تعالی کلام وي، نو په دغه تقدیر سره هیڅ اشکال نشته.

فَلَمَّا جَآءَ ءَالَ لُوطٍ ٱلْمُرْسَلُونَ ﴿٦١﴾ قَالَ إِنَّكُمْ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴿٦٢﴾

نو کله چې راغلل آل د لوط ته (هغه) لیږلې شوې (ملائک). نو وویل (لوط) دوی ته: بېشکه تاسې یو قوم یئ بل رنګ (نا آشنا ویرووِنکی).

قَالُوا۟ بَلْ جِئْنَـٰكَ بِمَا كَانُوا۟ فِيهِ يَمْتَرُونَ ﴿٦٣﴾

وویل (پرښتو: نه یو مونږ ناآشنا ډارونکي) بلکه (ملائک یو چې) راغلي یو تاته په هغه (عذاب) سره چې وو (قوم ستا) چې په هغه کې به یې شک کولو (له ډېر جهل او عناده).

**تفسیر:** یعنې مه ویریږه ! مونږ بنیادمان نه یو، مونږ خو له اسمانه هغه شی له خپله ځانه سره راوړی دی، چې په هغه کې دا خلق له تا سره جګړې کوي، یعنې هغه مهلک عذاب چې ته په هغه سره درګرده دوی ویروې، او دوی پرله پسې ترې انکار کوي.

وَأَتَيْنَـٰكَ بِٱلْحَقِّ وَإِنَّا لَصَـٰدِقُونَ ﴿٦٤﴾

او راوړی دی مونږ تاته حق (چې عذاب دی) او بېشکه مونږ خامخا یو صادقان (رښتین په دغه خبره کې).

**تفسیر:** یعنې اوس تاسې بالکل مطمئن شئ ! دغه بالکل داسې پخه او غوټه شوې خبره ده چې په کې له سره د درواغو احتمال نشته.

فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ بِقِطْعٍ مِّنَ ٱلَّيْلِ وَٱتَّبِعْ أَدْبَـٰرَهُمْ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ وَٱمْضُوا۟ حَيْثُ تُؤْمَرُونَ ﴿٦٥﴾

نو بوځه (وباسه) عیال خپل (له دې ښاره) په یوه ټوټه د شپې او ته (هم ځه) وروسته په دوی پسې، او نه دې ګوري بېرته له تاسو څخه هیڅ یو (چې ونه ویریږي)، او ځئ تاسې هغه ځای ته چې امر حکم شوی دی (تاسې ته).

تفسير: يعنې كله چې د شپې لږ څه برخه پاتې شي؛ نو ته سره د خپلې كورنۍ له دې ښاره ووځه !او تاسې له ګردو څخه وروسته لاړ شئ، څو پوره مطمئن شئ چې بل ستاسې هيڅوك نه دی پاتې شوی، يا له لارې بېرته نه دی ګرځېدلی، نو په دغه صورت كې به ستاسې زړونه بالكل ډاډه او مطمئن كيږي، او په پوره خاطر جمعي سره به د الله تعالى په ذكر او شكر كې مشغولېږئ، او د خپلو ملګرو له احواله به په ښه شان سره خبرېږئ، د بل لوري ستاسې د دغه بېرته تللو لامله به وړاندې تلونكي ستاسې له وېرې شا نه ګرځوي، او وروسته به نه ګوري.

په دې ډول به د ﴿وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ﴾ پوره امتثال كېدى شي، او دغه كسان به د خطر له ځايه لرې پاتې كيږي، او دوی به تاسې خپل ظاهري ملاتړ او ظهير ګڼي، (او ځئ تاسې هغه ځای ته چې پرې حكم كړی شوی دی تاسې ته) يعنې د شام په ملك كې، يا بل كوم ځای ته چې پاك الله دوی ته هغه د امن ځای مقرر كړی وي.

وَقَضَيْنَآ إِلَيْهِ ذَٰلِكَ ٱلْأَمْرَ أَنَّ دَابِرَ هَٰٓؤُلَآءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ ﴿٦٦﴾

او وحي كړې وه مونږ دغه (لوط) ته د دې كار (چې تفسير يې دا دی) چې بېشكه بېخ د دې كسانو به پرې كړی شي په دې حال كې چې دوی په سبا كې داخليږي.

تفسير: يعنې لوط عليه السلام ته مونږ د ملائكو په واسطه دغه قطعي فيصله واوروله، چې عذاب هيڅ لرې نه دی، اوس د ګهيځ (سحر وختي) په وخت كې به بالكليه دغه قوم استيصال (هلاك) كړی شي، او بيخي به فنا كيږي، ښايي چې مطلب يې داسې وي چې د صباح پر شروع كېدلو سره به عذاب هم شروع كيږي، او تر لمر ختو (اشراق) پورې به ګرده معامله پای ته ورسيږي، څكه چې په بل ځای كې د «مصبحين» په ځای د «مشرقين» لفظ راغلی دی.

وَجَآءَ أَهْلُ ٱلْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ ﴿٦٧﴾

او راغلل اهل (د هغه) ښار (كور د لوط ته) چې خوښي زيري يې كولو (يو په بل سره په چرت د لواطت كې).

تفسير: يعنې كله چې يې واورېده چې د لوط عليه السلام كره ډېر حسين او جميل هلكان مېلمانه شوي دي؛ نو د خپل عادت لامله په ډېر شوق او رغبت د هغه په لوري ور په منډه شول، او د ده د كور په شاوخوا كې سره غونډ شول، او د لوط څخه يې مطالبه وكړه چې دغه هلكان مونږ ته راوسپاره.

تنبيه: په ﴿وَجَآءَ أَهْلُ ٱلْمَدِينَةِ﴾ الآية ـ كې «واو» د مطلق جمع لپاره دی، دلته د واقعاتو د ترتيبو بيان ملحوظ نه دی، د «هود» او د «الأعراف»په سورتونو كې دغه قصه تېره شوې ده، هغه دې سره د هغو تفاسيرو دلته بيا ولوستل شي !.

قَالَ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ ضَيْفِى فَلَا تَفْضَحُونِ ﴿٦٨﴾ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَلَا تُخْزُونِ ﴿٦٩﴾ قَالُوٓا۟ أَوَلَمْ نَنْهَكَ عَنِ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٧٠﴾

وويل (لوط) چې بېشكه دا كسان مېلمانه ځما دي، نو مه شرموئ ما (په رسوايۍ د دوی؛ څكه چې د مېلمه فضيحت د كوربه رسوايي ده). او وويرېږئ تاسې له الله (او لواطت مه كوئ) او مه سپكوئ تاسې ما (د مېلمنو په مخ كې).بيا وويل (قوم د لوط لوط ته) آيا نه وې منع كړی مونږ ته له (پناه وركولو د) خلقو نه؟ .

قَالَ هَٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِىٓ إِن كُنتُمْ فَٰعِلِينَ ﴿٧١﴾

وويل (لوط) چې دغه دي لوڼې ځما كه يئ تاسې كوونكي (د نكاح له دغو سره).

تفسير: تاسې خپله غور وکړئ، چې آیا د شهوت د قضاء حلالي مواقع ستاسې په مخکې موجود نه دي، چې د دغسې چټي (بېکاره) حرام کاري مرتکب کېږئ؟ دغه دي ستاسې ښځې (چې څما د لونړو په شانې دي) ستاسې په کورونو کې موجودې دي، که تاسې څما پر وینا عمل وکړئ او د شهوت د قضاء پر مشروعه او معقوله طریقه لاړ شئ، نو د حاجت د قضاء لپاره هغوی کافي دي، دا څومره بده او خرابه خبره ده چې له حلال او طیب شي څخه تاسې مخ اړوئ او د حرامو په پلیتۍ کې ځان ککړوئ.

لَعَمْرُكَ إِنَّهُمْ لَفِي سَكْرَتِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿٧٢﴾

(نو وفرمایل الله) قسم دی په عمر ژوند ستا (ای محمده !) چې بېشکه دغه (قوم د لوط) خامخا په مستۍ (د ګمراهۍ) خپله کې مدهوشان دي.

تفسير: ظاهر خو دغه دی چې دا خطاب د الله تعالی له طرفه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دی، یعنې ستا په عمر او ژوند قسم دی چې د لوط علیه السلام قوم د غفلتونو او مستیو په نشو کې بېخي ویده (اوده) او رانده شوي وو، دوی په ډېره بې پروایۍ سره د لوط علیه السلام نصیحت ونه مانه، بلکه تر پښو لاندې به یې غورځاوه، دوی د خپلو قوتونو په نشو کې مست وو، شهوت خوښول د دوی زړه او دماغ بېخي مسخ او خراب کړي وو، دوی په ډېر امن او اطمینان د الله تعالی د نبي سره جګړې کولې، او نه پوهېدل چې تر سحره پورې دوی ته څه حال پېښېدونکی دی؟ د تباهۍ او د موت وریځې د دوی پر سر ورختلې وې، دوی د لوط علیه السلام پر خبرو خندل، خو مرګ د دوی پر دغه وضعیت خندېده.

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُشْرِقِينَ ﴿٧٣﴾

نو ونیول هغوی لره غږ هیبتناک (د جبریل) حال دا چې داخلېدل دوی په وخت د ختلو د لمر کې.

تفسير: د دې په متعلق مونږ په همدغه قریب ځای د ﴿دَابِرَ هَٰؤُلَاءِ مَقْطُوعٌ مُّصْبِحِينَ﴾ په تفسیر کې کلام کړی دی، «ابن جریج رحمه الله تعالی» وایې: هر هغه عذاب ته چې په هغه سره کوم قوم هلاک کولی شي؛ «صیحه» یا «صاعقه» ویلی شي.

فَجَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ ﴿٧٤﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّلْمُتَوَسِّمِينَ ﴿٧٥﴾

نو وګرځولو مونږ پورته طرف د دې ښارونو ښکته طرف د دوی، او اُووَرول مونږ پر هغوی کاڼي له کرتکاڼو څخه (چې په هر یوه به د خپل مرجوم «سنګسار» نوم لیکلی وو). بېشکه چې په دغه (مذکور کې چې تېرې قصې دي) خامخا دلائل (د عبرت او قدرت) دي لپاره د پوهانو عبرت اخیستونکو.

تفسير: د سدومیانو د تعذیب تفصیل د «هود» په سورت او نورو کې تېر شوی دی، «متوسم» په اصل کې هغه شخص ته وایې: چې د ځینو ظاهري علاماتو او قرائنو له لیدلو څخه یوائې په فراست سره د کوم شي سراغ لګوي.

په حدیث کې راغلي دي: «اتقوا فراسة المؤمن فإنه ینظر بنور الله»، په ځینو روایتونو کې د «بتوفیق الله» زیادت شته، یعنې د مؤمنینو له فراسته تل وویرېږئ چې مؤمن د الله تعالی له عطا کړی شوې رڼا په توفیق سره ویني.

وَإِنَّهَا لَبِسَبِيلٍ مُّقِيمٍ ﴿٧٦﴾

او بېشکه دغه (قریې) خامخا پرتې دي په لاره سمه (چلنده) کې.

تفسير: له مكي معظّمې ځنې د شام په لوري تلونكيو ته د دغو چپه (وران) شويو ښارو كنډوالې په نظر راتللې ﴿وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِم مُّصْبِحِينَ﴾ (۲۳ جزء د الصافّات سورت (۱۳۷ – ۱۳۸) (۴) ركوع).

﴿إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّلْمُؤْمِنِينَ﴾

او بېشكه په دغه (اهلاك د هغوى) كې خامخا دليل (د عبرت) دى مؤمنينو ته.

تفسير: يعنې د هغو كنډوالو له ليدلو څخه بالخصوص مؤمنينو ته عبرت حاصلېږي، ځكه چې هغوى پوهېږي چې د لوط عليه السلام د قوم د بغاوت او بدكارۍ په سزا كې دغه ښارونه سره د اوسېدونكو د هغو له يوه مخ اړولي شوي دي، د مؤمنينو څخه ما سوا نور خلق ممكن دي چې د هغو د ليدلو څخه داسې ووايي چې: دغه ورانى محض اتفاقي يا طبيعي ـ يا د بخت او طالع (بدبختۍ) يا د نورو عواملو لامله واقع شو دى.

﴿وَإِن كَانَ أَصْحَابُ الْأَيْكَةِ لَظَالِمِينَ﴾

او په تحقيق شان دا دى چې وو خاوندان د ځنګل (له قوم د شُعيب) خامخا له ظالمانو (په سبب د كفر خپل).

تفسير: د «ځنګل» اوسېدونكي، يعنې د شُعيب عليه السلام قوم چې د «مدين» په ښار كې اوسېدل، او هغوى ته نژدې د ونو ځنګل (بن) وو، او ممكن دي چې ځينې خلق به هلته هم اوسېدل، ځينې وايي چې «أصحاب الأيكه» او «أصحاب المدين» دوه سره جلا (جدا) قومونه دي، چې شُعيب عليه السلام د دواړو په لوري مبعوث شوى وو، دغو كسانو ګناه شرك او بت پرستي او داړه مارۍ او په تول او پيمانه كې فرېب وركول او غولول وو، د دوى مفصّله قصه د «هود» او د «الأعراف» په سورت كې تېره شوې ده، هلته دې ولوستله شي.

﴿فَانتَقَمْنَا مِنْهُمْ وَإِنَّهُمَا لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ﴾

نو انتقام واخيست مونږ د دوى څخه (په سخته سزا سره) او بېشكه دا (ښارونه د لوط او شُعيب) خامخا پراته دي په لاره لويه ښكاره كې.

تفسير: يعنې د شام او حجاز پر هغې لارې چې د لوط عليه السلام د قوم كلي وو، له هغو څخه لږ څه ښكته د شُعيب عليه السلام د قوم مسكن وو، د دغو دواړو آثار به تلونكو راتلونكو ته په نظر راتلل.

﴿وَلَقَدْ كَذَّبَ أَصْحَابُ الْحِجْرِ الْمُرْسَلِينَ﴾

او خامخا په تحقيق دروغجن شميرلي وو خاوندانو د حجر (يعنې ثموديانو) د الله رسولانو لره.

تفسير: له أصحاب الحجر څخه مقصود «ثموديان» دي، چې د دوى د ملك نوم «حجر» وو، او د مدينې منورې په شمال كې واقع دى، او د دوى په لوري صالح عليه السلام مبعوث شوى وو، هغوى دى دروغجن وګاڼه، چې همدغه يوه نبي ته د دروغو نسبت كول ـ ګواكې ګردو (ټولو) انبياوو ته د دروغو نسبت كول دي.

﴿وَآتَيْنَاهُمْ آيَاتِنَا فَكَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ﴾

او وركړي وو مونږ دغو (ثموديانو) ته دلائل خپل؛ نو وو دوى له هغو (معجزو) څخه مخ ګرځوونكي.

تفسير: يعنې هغه اوښه چې له تيږې (کټې) څخه ايستلې شوې وه، او برسېره پر هغه نور معجزات.

وَكَانُوا يَنْحِتُونَ مِنَ الْجِبَالِ بُيُوتًا آمِنِينَ ﴿٨٢﴾

او وو دوی چې تورلې کښودلې به يې له غرو څخه کوټې په دې حال کې چې په امن کې به وو (په هغو کې له هره آفته).

تفسير: يعنې پر دنيوي ژوندون مغرور وو، او د خپل تکبّر او لويي د ښکاره کولو لپاره يې غرونه تورل، او لوی عاليشان منازل به يې جوړول، او داسې به يې ګڼل چې مونږ له سره له دې ځايه بل چېرې تلونکي نه يو، او پخپلو منځو کې به يې سره ويل چې: «مونږ ته به په داسې مضبوطو او مستحکمو عمارتو کې هيڅ يو آفت او مصيبت له سره نه وي رارسېدونکی».

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ مُصْبِحِينَ ﴿٨٣﴾ فَمَا أَغْنَىٰ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿٨٤﴾

نو ونيول هغوی لره غږ هيبتناک (د جبريل) په دغه حال کې چې داخلېدل دوی په سبا کې؛ نو دفع نه کړ له دوی نه (هيڅ عذاب) هغو شيانو چې وو دوی چې حاصلول به يې (چې ټينګې بناوې، اموال، رجال او نور وو).

تفسير: يعنې مال ـ دولت ـ مستحکم عمارات ـ جسماني قوت او نور اسباب او وسائل هيڅ يو شی هم د الله تعالی عذاب نشي دفع کولی، د دوی قصه هم پخوا تېره شوې ده.

په حديث کې دي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د تبوک د تګ په وخت کې کله چې د «حجر» پر وادي تېرېده؛ نو خپل مبارک سر يې پخپل څادر پټ کړ، او د خپلې سورلۍ تګ يې تېز کړ، او اصحابو ته يې امر وکړ، چې «د معذّب قوم په کليو کې مه ننوځئ ! مګر په داسې شان چې د الله تعالی له وېرې وژاړئ، او که ژړا نه درځي؛ نو د ژړېدونکو په شان وضعيت ځان ته غوره کړئ ! الله تعالی دې داسې ونه کړي چې تاسې ته هم داسې در ورسيږي، چې دغو ته رسېدلې وو».

دغه يې مسلمانانو ته ادب وروښود؛ چې سړی ښايي د دغسې ځايونو له کتلو څخه عبرت واخلي، او د پاک الله له وېرې څخه لړزېدونکی او وېرېدونکی وي، او د هسې ځايونو ليدل دې تش سيل او تماشا ونه ګڼي !.

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ ۗ وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ ۖ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ ﴿٨٥﴾

او نه دي پيدا کړي مونږ اسمانونه او ځمکه او هر هغه څه چې په منځ د دوی کې دي مګر په حق (او حکمت او تدبير) سره، او بېشکه قيامت خامخا راتلونکی دی (نو الله تعالی ستا انتقام اخلي له مکذّبانو څخه)؛ نو څنګ وکړه ته له دوی نه په څنګ کولو نېکو سره (يعنې عفوه ورته وکړه).

تفسير: شاه صاحب ليکي: «د پخوانيو امتونو حال يې واوراوه چې دا جهان همداسې تش نه دی، او پر سر يې يو لوی مدبر شته، چې د ده لوی ذات د هر څيز تدارک کوونکی دی، او د مکمل او آخري تدارک نوم قيامت دی، او له کفّارو څخه د څنګ کېدلو امر يې هلته وفرمايه، چې د الله حکم ورسولی شي، او د تبليغ فرض اداء کړی شي، او کافران لا پخپل ضد او عناد باندې ټينګ ولاړ وي، نو دلته حکم وشو چې د زياتې جګړې کولو څخه هيڅ يوه فائده نشته، اوس نو د وعدې لارې ګوره ! او د دوی په ايذاء او تکليف صبر کوه ! او د شکايت حرف پر خپله ژبه مه راوړه ! تر څو چې د پاک الله فيصله راشي»، (ځينو ويلي دي چې دغه حکم منسوخ شوی دی په آيت د سيف سره).

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ ﴿٨٦﴾

بېشکه رب ستا همدی دی ښه پیدا کوونکی ډېر علم والا.

وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعًا مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقُرْآنَ الْعَظِيمَ ﴿٨٧﴾

او خامخا په تحقیق درکړی دی مونږ تاته اووه آیته له فاتحې او (درکړي دي مونږ تاته) قرآن عظیم (الشان خورا ډېر لوی).

**تفسیر:** شاه صاحب لیکي: «یعنې دغومره لوی نعمت ته وګوره چې تاته عطا شوی دی، او د کفارو له ضده مه خپه کېږه !».

**تنبیه:** د «سبع المثاني» په مصداق کې اختلاف دی، صحیحه او راجحه همدغه ده، چې له هغه څخه د سورت «الفاتحه» اووه آیتونه مراد دي، چې د هر لمانځه په هر رکعت کې تکرارېږي، په صحیحه وو احادیثو کې تصریح ده چې نبي کریـم صلی الله علیه وسلم د سـورت «الفاتحـه» پـه نسبت فرمایلي دي چې: «همدغه «سبع المثاني» او عظیم الشان قرآن دی؛ چې ماته راکړی شوی دی»، او دغه وړو کي سورت ته «قرآن عظیم» یعنې لوی قرآن فرمایل د اعتبار په درجه دي، دغه سورت ته «أم القـرآن» هم په همدغه لحاظ سـره وایي، چې ګواکې دغه یوه خلاصه او عماد دی، چې ښایي د هغه پوره تفصیل او شرح پاک قرآن ګڼلی شي، د عظیم الشان قرآن د تمامو علومو او مطالبو اجمالي نقشه یوائې په همدغه سورت کې شته.

برسېره په دې د «مثاني» د لفظ اطلاق له ځینو حیثیاتو لامله پر پوره قرآن هم کړی شوی دی: ﴿اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَابًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ﴾ (۲۳ جزء د الزمر سورت (۲۳) آیت (۳) رکوع)، او ممکن دي چې نورو سورتونو ته هم له مختلفو وجوهو «مثاني» وویلی شي، مګر په دغه ځای کې د «سبع مثاني» او «قرآن العظیم» مصداق همدغه د «الفاتحه» سورت دی، یا به له «المثاني» نه د «الفاتحه» سورت او له «القرآن العظیم» نه پخپله عظیم الشان قرآن مراد وي، او دغه عطف له قبیل د عطف د عام وي پر خاص باندې.

یعنې او خامخا په تحقیق سره درکړی دی مونږ تاته ای رسوله څما اووه آیتونه له «الفاتحه» څخه، او درکړی دی مونږ تاته قرآن لوی چې یې لوی دی قدر او ثواب د لوستلو په نزد څمونږ.

لَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلَىٰ مَا مَتَّعْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِلْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٨﴾

مه راکاږه او مه پورته کوه سترګې خپلې (په رغبت سره) هغو شیانو ته چې نفع ورکړې ده مونږ په هغه سره حال دا چې هغه قسم قسم شیان دي دغو کفارو ته، او خفګان مه کوه په دغو (کفارو چې ایمان نه راوړي، یا په دې چې مؤمنان په ظاهري نعمتونو کې نه دي)، او ښکته کړه وزر خپل لپاره د مؤمنانو (او شفقت او مرحمت کوه پر دوی).

**تفسیر:** مشرکین ـ یهود ـ نصاری او د الله جلّ جلاله او رسول صلی الله علیه وسلم نورو دښمنانو ته د دنیا د څو ورځني ژوندانه سامان چې ورکړی شوی دی؛ هغه ته مه ګورئ ! دوی پر پرېږدئ چې څو ورځې مزې وکړي، تاسې ته پاک الله د قرآن عظیم هغه دولت درکړی دی؛ چې د هغه په مقابل کې د دنیا نور دولتونه هیڅ دي، په روایاتو کې راغلي دي: «هر چاته چې الله تعالی قرآن ورکړي، او دی د نورو نعمتونو هوس کوي؛ ګواکې ده د قرآن قدر ونه کړ».

﴿وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ﴾ الآية ـ يعني غم مه خوره چې دوی ولې نه مسلمانيږي، تاسې د خپل تبليغ اداء کوئ ! او معاندينو پسې خپل ځان په زيات فکر او غم کې مه مبتلا کوئ ! ستاسې د شفقت او همدردۍ مستحق مؤمنين دي، له دوی سره د ملاطفت، پوستوالي، مهرباني، شفقت او تواضع وضعيت وکړئ !.

وَقُلْ إِنِّيٓ أَنَا ٱلنَّذِيرُ ٱلْمُبِينُ ﴿٨٩﴾

او ووايه (ای محمده !) چې بېشکه زه چې يم همدا زه وېروونکی ښکاره يم (له عذابه د الله).

تفسير: يعني که يې منئ يا يې نه منئ؛ زه د الله تعالی پيغام صاف صاف تاسې ته رسوم، او د تکذيبونو او شرارتونو له بدو عواقبو (انجام) څخه مو په ښکاره ډول (طريقه) سره اګاه کوم.

كَمَآ أَنزَلْنَا عَلَى ٱلْمُقْتَسِمِينَ ﴿٩٠﴾ ٱلَّذِينَ جَعَلُوا۟ ٱلْقُرْءَانَ عِضِينَ ﴿٩١﴾

(درکړي مو دي تاته سبع المثاني يا لېږلی مو وو عذاب) لکه چې نازل کړی وو مونږ (عذاب) پر قسمت کوونکو. هغو چې ګرځولی يې وو (دغه) قرآن ټوټې ټوټې (چې ځينې ته به يې شعر او ځينې ته به يې سحر ويل).

تفسير: د دې آيت معنی په څو ډوله شوې ده، ځينو ويلي دي چې له «مقتسمين ـ ويشونکو» څخه مراد د رسول الله صلی الله عليه وسلم د زمانې هغه يهودان او نصرانيان دي؛ چې د قرآن تقسيم او تحليل يې کړی وو، يعنې هغه قرآني مضامين چې د دوی د تحريفاتو او آراوو او اهواوو سره موافق لوېږي؛ نو يې مني، او هغه چې ترې مخالف واقع شي؛ نه يې مني.

مطلب به يې داسې شي چې: مونږ تاسې ته «سبع المثاني» او «عظيم الشان قرآن» درکړی، او لېږلی مو يې، او همغسې چې پخوانيو انبياوو ته مو کتابونه لېږل يا وحي مو نازلوله (يا پر پخوانيو کفارو مو عذاب نازلاوه؛ نو دغه) ارسال يا د وحي انزال کومه نوې عجيبه خبره نه ده، چې ترې انکار وکړی شي.

ځينو له «مقتسمين» څخه يهود او نصاری او د قرآن له لفظه سابقه کتابونه مراد کړي دي، يعنې هغوی تحريفات وکړل، او خپل کتابونه يې ځيرې کړل.

ځينو ويلي دي چې هغه مشرکان ترې مراد دي، چې د استهزاء او تمسخر په ډول په قرآن کې يې تقسيمات کول، کله چې د قرآني سورتونو نومونو به يې اورېدل؛ نو پخپلو منځو کې دوی سره خندل، او ويل به يې چې «البقرة» يا «المائدة» به زه اخلم، «العنکبوت» او «النمل» به تاته درکړم.

دغو کسانو په يو بل قسم سره هم د قرآن عظيم په متعلق خپل خيالات تقسيم کړي وو، چا به ورته شعر ويل، چا به جادو ګاڼه، چا به د لېونيانو د اپلتو نسبت ورته کاوه، چا به «أساطير الأولين» باله.

نو دغو ګردو ته يې خبر ورکړ؛ چې زه تاسې ګرد له داسې عذابه وېروونکی يم، لکه چې يقينا پر دغو مسخرو کوونکيو باندې نازل کېدونکی دی.

په دې تقدير د «أنزلنا» تعبير به په دې لحاظ وي چې متيقن الوقوع او قريب الوقوع مستقبل ګواکې ماضي فرض شوی دی.

ابن کثير (رحمه الله) د «مقتسمين» معنی په قسم يادوونکو سره اخيستې ده، يعنې هغو پخوانيو اقوامو چې د انبياوو په تکذيب او مخالفت باندې قسمونه ياد کړي وو، او پر دغو خبرو يې قسمونه يادول، دوی سماوي کتابونه ټوټې

ټوټې کړي وو، همغسې چې مونږ پر هغوی باندې عذاب نازل کړ، نو د همغه عذاب پشان سره دغه ﴿نَذِيرٌ مُّبِينٌ﴾ هم تاسې ويروي.

د «مقتسمين» د دې معنی په تاييد کې «ابن کثير» دغه آيات وړاندې کړي دي: ﴿قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ﴾ (۱۹ جزء د النمل سورت (۴۹) آيت (۴) رکوع)، ﴿وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ﴾ (۱۴ جزء د النحل سورت (۳۸) آيت (۵) رکوع)، ﴿أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُم مِّن قَبْلُ مَا لَكُم مِّن زَوَالٍ﴾ (۱۳ جزء د ابراهيم (۴۴) آيت (۷) رکوع)، ﴿أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمْتُمْ لَا يَنَالُهُمُ اللَّهُ بِرَحْمَةٍ﴾ (۸ جزء د الأعراف سورت (۴۹) آيت (۶) رکوع).

فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٩٢﴾ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾

نو قسم دی په رب ستا چې خامخا وبه پوښتو مونږ خامخا دوی ټول (په ورځ د قيامت). د هغو اعمالو (د قسمت يا نسبت) څخه چې وو دوی چې کول به يې.

فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ ﴿٩٤﴾

نو ښکاره (او په جهر کړه ای محمده !) هغه دعوت چې ته مامور يې پرې، او مخ واړوه له مشرکانو څخه (او مه کوه هيڅ التفات او پروا د دوی ويلو ته).

**تفسير:** يعنې په ويلو کې هيڅ کوتاهي مه کوئ، او ښه پاک په ښکاره ډول سره د پاک الله پيغام ورسوئ ! دغه مشرکين ستاسې هيڅ شی نشي خرابولی.

إِنَّا كَفَيْنَاكَ الْمُسْتَهْزِئِينَ ﴿٩٥﴾ الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٩٦﴾

بېشکه مونږ کافي شوي يو لپاره ستا (له شره) د مسخرو کوونکو (او بس شوي يو له طرفه ستا په مقابل د اضرارو د هغو کې). هغه کسان چې ګرځوي (شريکوي) دوی سره له الله (چې بر حق معبود دی) معبود بل، نو ژر به پوه شي دوی (په عاقبت د کار خپل په دنيا او عُقبی کې).

**تفسير:** يعنې په دنيا او آخرت کې مونږ ګردو مسخرو کوونکو ته سزا ورکوو، تاسې بې خوفه او خطره خپل تبليغ ته دوام ورکړئ، ستاسې يوه ويښته ته به هم څه ضرر او زيان نه رسيږي.

﴿الَّذِينَ يَجْعَلُونَ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ﴾ يعنې له رسول الله سره د استهزاء ـ او له الله تعالی سره د شريک درولو د دغو دواړو انجام او سزا به دغه خلق ګوري.

وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ ﴿٩٧﴾ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُن مِّنَ السَّاجِدِينَ ﴿٩٨﴾ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ ﴿٩٩﴾

او خامخا په تحقيق معلوم دی مونږ ته؛ چې بېشکه ته چې يې تنګي راوړي سينه ستا په سبب د هغه خبرو چې وايي دغه (کفار). نو تل تسبيح وايه سره له حمده د رب خپل او شه تل له سجده کوونکيو څخه. او عبادت کوه د رب خپل تر هغه پورې چې راشي تاته يقين (يعنې مرګ).

**تفسير:** يعنې که د کفّارو له ضده او عناده او له دې نه چې شريک دروي الله تعالی ته، او طعن وايي په قرآن، او تمسخر کوي په نبي صلی الله عليه وسلم، زړه تنګه شئ؛ نو تاسې هغوی څنې خپله توجه واړوئ، او بيخي د الله تعالی په تسبيح

او تحميد کې مشغول شئ ! د الله تعالی ذکر ـ لمونځ ـ سجده ـ د الله تعالی عبادت هغه شیان دي؛ چې د هغه له تاثیره قلب مطمئن او منشرح او ډاډینه مومي، او فکر او غم ترې لرې کيږي، نو ځکه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم عادت وو، کله چې کومه مهمه خبره به ورپېښیده؛ نو دوی به په لمانځه مشغولېدل.

﴿وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّىٰ يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ﴾ «او عبادت کوه د رب خپل تر هغه پورې چې راشي تاته یقین» یعنې موت، د جمهورو اسلافو په نزد په دغه آیت کې د «یقین» معنی په موت سره کيږي، یعنې د مړینې تر وخته پورې د الله تعالی په عبادت کې مشغول او لګیا اوسه !.

تمّت سورة الحجر، ولله الحمد والمنة، وهو المسئول أن يتوفّانا على أكمل الأحوال وأحسنها، فإنه جواد كريم، ملك برٌّ رؤوفٌ رحيم.



# سُورَةُ النَّحْلِ

«د (النحل) سورت «مکي» دی، پرته له دوو وروستنیو آیتونو چې «مدني» دي، (۱۲۸) آیتونه او (۱۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۱۶) او په نزول کې اویایم سورت دی، وروسته د (الکهف) له سورت څخه نازل شوی دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ ۚ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ①

راغی امر (حکم) د الله (په نصرت د مؤمنین او قیام د یوم الدین) نو تلوار مه کوئ تاسې هغه ته (ای کفّارو)، پاکي ده الله ته او لوی (اوچت او پورته) دی له هغه چې دوی شریک ورسره پیدا کوي (له بُتانو او نورو طواغیتوا).

تفسیر: یعنې د الله تعالی د دغه حکم د وُقوع وخت قریب رارسېدلی دی، چې «د رسول الله صلی الله علیه وسلم جماعت غالب او منصور ـ او د حق مخالفان به مغلوب او ذلیل وي، او هغوی ته به په دنیا کې د مجاهدینو مسلمانانو له لاسونو، او په آخرت کې د ﴿أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ﴾ د دربار له لوري د شرك او كفر سزا ورسیږي، او د قیامت ساعت هم لرې نه دی»، د هغه شي راتلل چې یقیني وي؛ هغه ښايي راغلی وګڼلی شي، بیا د هغه د ژر غوښتلو ضرورت څه دی؟.

كفّارو به د تكذیب او استهزاء له لارې ویل چې: د هغه عذاب یا د قیامت وعده چې تاسې راسره كوئ؛ ولې ژر نه راځي؟ نو دوی ته یې تنبیه فرمایلې ده چې ستاسې له داسې ویلو څخه هغه لرې كېدونكې نه ده، بلكه په حتمي او یقیني ډول سره هغه ژر راتلونكې ده، هر څومره چې په كې ځنډ (تأخیر) هم ولګیږي؛ هغه هم یو شان ستاسې په حق كې مفید دی، ممكن دی چې دې ضمن كې ځینو ته د اصلاح او د توبې توفیق ور په برخه شي.

يُنَزِّلُ الْمَلَائِكَةَ بِالرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ أَنْ أَنْذِرُوا أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاتَّقُونِ ②

نازلوي (الله) ملائكې سره له روح (د وحي) په امر (حكم) خپل پر هر چا چې اراده وفرمايي (د نبوّت يې) له بندګانو خپلو، (او داسې فرمايي انبياوو ته) چې وویرېږئ (خبردار كړئ تاسې خلق) په دې چې بېشكه نشته بر حق معبود مګر همدا زه يم، نو وويرېږئ تاسې له ما نه.

تفسیر: یعنې د پرښتو په جنس كې ځینو ته لكه جبرئیل علیه السلام یا «حفظة الوحي» د هغوی په لوري په ﴿فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا﴾ كې یې اشاره كړې ده (۲۹ جزء د الجن سورت (۲۷) آیت (۲) ركوع).

﴿بِالرُّوحِ﴾ سره له روح او اسرارو د وحي، یا سره له نبوّت، یا قرآن چې هر یو له دغو څخه زړونه ته په غیر مرئي طریقې د یوې سرې او پټې خبرې په ډول راتله، لكه چې په (۲۴ جزء د المؤمن سورت په (۱۵) آیت دويمه ركوع كې یې فرمایلي دي: ﴿يُلْقِي الرُّوحَ مِنْ أَمْرِهِ عَلَىٰ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ﴾ او په (۲۵ جزء د الشوری سورت (۵۲) آیت (۵) ركوع كې یې فرمایلي دي: ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا﴾ د قرآن یا د الهي وحي په «روح» سره تعبیر كولو كې دغه اشاره ده، چې همغسې چې مادي اجسامو ته له نفخې څخه ظاهري حیات حاصلیږي؛ همداسې هغه قلوب هم چې د جهل او ضلال له ناروغیو څخه مړه شوي دي، د الله تعالی د وحي له رسېدلو څخه ژوندي كیږي.

﴿مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ﴾ هغه بندګان انبياء عليهم السلام دي چې پاك الله هغوى په ګرد مخلوقاتو سم له خپل حكمت او كامل اختيار سره غوره كړي دي، ﴿اَللّٰهُ اَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهٗ﴾ (۸ جزء د الأنعام سورت (۱۲۴) آيت (۱۵) ركوع)، ﴿اَللّٰهُ يَصْطَفِيْ مِنَ الْمَلٰٓئِكَةِ رُسُلًا وَّمِنَ النَّاسِ﴾ (۱۷ جزء د الحج سورت (۷۵) آيت (۱۰) ركوع).

﴿اَنْ اَنْذِرُوْٓا اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاتَّقُوْنِ﴾ «داسې چې وويروئ او خبردار كړئ خلق په دې چې نشته هيڅ بر حق معبود مګر همدا زه يم؛ نو وويريږئ تاسې له ما نه»، يعني د توحيد تعليم ـ د شرك ترديد ـ د تقوى په لوري دعوت ـ دغه على الدّوام د ګردو انبياوو عليهم السلام مشتركه او متفقه نصب العين دى، ګواكې دغه د توحيد د اثبات نقلي دليل دى، وروسته له دې نه عقلي دلائل هم بيانيږي.

خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ تَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝۳

پيدا كړي دي (الله) اسمانونه او ځمكې په حق (حكمت او رښتيا) سره، پورته دى (الله) له هغه څه نه چې شريكان يي ورته نيسي دغه (مشركان).

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ۝۴

پيدا كړى دى (الله) انسان لره له نطفې (اوبو د منيو) نه، نو ناڅاپه دغه (انسان) سخت جګړه كوونكى وو ښكاره (په ناحقه سره).

تفسير: يعني د علويّاتو او سفلياتو د انتظام څخه مو وروسته تاسې پيدا كړئ، تاسې پخپله د خپل خلقت په لوري غور وكړئ ! نو د الله تعالى د عجيبو او غريبو صنعتونو او قدرتونو كارونه به درښكاره شي، ستاسې اصل څه وو؟ يو داسې بې سا څاڅكى چې نه په كې حس او حركت وو، او نه شعور او اراده، او نه د خبرو او كار كولو لايق وو، هغه څه چې د يوه حرف په ويلو قادر نه وو؛ وګوره چې اوس څنګه ښې ويناوې، نطقونه او كانفرنسونه كوي؟ په هغه كې چې لږ ادنى حس او حركت نه وو؛ اوس څرنګه په هره هره خبره د جګړې كولو ـ او حجّت او دلائل ايستلو قدرت په كې پيدا شوى دى، حتى په ځينو اوقاتو له مخلوقه تېر شوى ـ تر خپل خالق پورې هم خبرې كوي، او د ده په مقابل كې ټينګ دريږي، او احكام يي نه مني، او دا يي هم په ياد ونه ساتله، چې د ده اصل څه وو؟ او دغه طاقت يي څرنګه حاصل كړ؟ او چا وركړ؟ ﴿اَوَلَمْ يَرَ الْاِنْسَانُ اَنَّا خَلَقْنٰهُ مِنْ نُّطْفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيْمٌ مُّبِيْنٌ ٭ وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ ؕ قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ ٭ قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ؕ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمٌ﴾ (۲۳ جزء د يسين سورت (۷۷، ۷۸، او ۷۹) آيتونه (۵) ركوع).

وَالْاَنْعَامَ خَلَقَهَا ۚ لَكُمْ فِيْهَا دِفْءٌ وَّمَنَافِعُ وَمِنْهَا تَاْكُلُوْنَ ۝۵

او چارپايان پيدا كړي دي (الله)، تاسې لپاره (اى انسانانو !) چې شته په دوى كې اسباب د ځان ساتلو (له يخنى) او (نورې ډېرې) نفعې، او له ځينو دغو (چارپايانو) څخه خورئ تاسې.

تفسير: يعني الله تعالى اوښ ـ غويي ـ مېږه (ګډه) ـ اوزه (بيزه) ـ او نور يي در پيدا كړل، چې د هغو له وړيو او ويښتانو او نورو څخه كمبل ـ چكمن ـ جرابې ـ شړۍ ـ ټكر (څادر) ـ ټغر ـ لمڅې ـ كيږدۍ ـ او د يخنى نه د ژغورلو (محفوظولو) لپاره ترې نور شيان جوړوئ، برسېره په دې د هغوى شودې څښئ، او د بزګرى چارې ترې اخلئ، د غوړيو ـ كوچو ـ كرتو ـ ماستو او شوملو افراط د همدغو حيواناتو له وجوده دى چې تاسې ته لنګيږي، او تاسې پرې سوريږئ، او سوداګري او كراكښې پرې كوئ، د دوى له څرمنې څخه څرنګه ښه ښه او لوړ قيمته اسباب او سامان تياروئ، د هغوى حيواناتو غوښې چې خورئ په هغو كې هيڅ كوم معتد به بدني يا اخلاقي مضرت نشته، د دوى له غوښې او وازدو څخه

خومره استفاده کيږي؟ او د څومره غريبانو نسونه پرې مړيږي؟ او هغه نور خواړه چې مونږ يې خورو؛ د هغو په تيارى کې تر کومه اندازه پورې د دغو حيواناتو دخل شته؟.

وَلَكُمْ فِيهَا جَمَالٌ حِينَ تُرِيحُونَ وَحِينَ تَسْرَحُونَ ﴿٦﴾

او شته تاسې ته په دغو (چارپايانو) کې زيب او زينت کله چې بېرته يې کور ته راولئ لپاره د راحت، او کله چې بهر ته يې د څر لپاره بيايئ.

**تفسير:** کله چې مواشي او حيوانات په کورونو کې ولاړ وي، يا په صحراوو کې سره تيت او پرک (خواره واره) او په څر کې لګيا او له سترګو څخه لرې وي، نو په دغه وخت کې د الله تعالى د انعام داسې ښکاره او صافه مظاهره نه کيږي، څه مهالې چې دوى ګهيځ (سحر وختې) په اوله د ورځې کې د څر لپاره له کورونو وځي،يا ماښام وروسته د څرېدلو او ګېډې مړولو له صحراء څخه د کورونو په لورې راځي؛ نو يو عجيبه رونق او خوښي، او ډېره ښه ننداره او خوشالي ترې محسوسيږي، نه يواځې خاوند د خپلو دغه مالونو د ليدلو څخه خوښيږي؛ بلکه نور کسان هم د هغو له ليدلو څخه خوشاليږي، او يو له بله سره وايي چې پاک الله هغه سړي ته څومره دولت او اقبال ورکړى دى.

وَتَحْمِلُ أَثْقَالَكُمْ إِلَىٰ بَلَدٍ لَّمْ تَكُونُوا بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنفُسِ ۚ إِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٧﴾

او بارووي دغه (چارپايان) درانه بارونه ستاسې (او رسوي يې) هغه ښار ته چې نه وئ تاسې رسيدونکي هغه ته مګر په سختۍ مشقت د نفسونو (ځانو) خپلو سره، بېشکه چې رب (پالونکى) ستاسې خامخا لوى شفقت والا ډېر رحم کوونکى دى (چې دغه حيوانات يې هم پيدا کړي دي ستاسو د منافعو لپاره).

**تفسير:** يعنې چېرې چې تاسې جره بې له اسبابه او سامانه په ډېر مشکل رسېدى شوئ؛ دغه بودګان (ځناور) تاسې او ستاسې درانه اسبابونه هم وړي، دا د الله تعالى څومره لويه مهرباني ده؛ چې دغه حيوانات يې ستاسې د خدمت لپاره خلق او درولي دي، او له دغو څخه د خدمت اخيستلو اجازه يې درکړې ده، څو خپل ډېر او سخت او مشکل مهمّات هم د دغو حيواناتو په وسيله اسان کړئ، ﴿أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ * وَذَلَّلْنَاهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ﴾ (۲۳ جزء د يس سورت (۷۱، ۷۲) آيتونه (۵) رکوع).

وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً ۚ

او (پيدا کړي دي الله) آسونه او قچرې او خره لپاره د دې چې سورېږئ تاسې په دوى باندې او (زينت کوئ پر دغو) په زينت کولو سره.

**تفسير:** يعنې پرې سورېږئ او شان مو ترې ظاهريږي.

**تنبيه:** په عربستان کې د خره سورلى معيوبه نه ده، او د هغه ځاى خره (څمونږ د پښتنو د بلخي خرو په شان) ډېر غښتلي، قيمتداره، ګړندي، چالاک او ښکلي دي، حتّى ځيني خره د اس په شان مزل کوي، ډېر او ښه ځغلي.

وَيَخْلُقُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨﴾

او پيدا کوي (الله ډېر نور) څيزونه چې اوس يې نه پېژنئ تاسې.

تفسیر: یعنې د هغو حیواناتو (او مرکوباتو) ذکر چې پاس وشو؛ برسېره پر هغه الله تعالی ستاسې د انتفاع لپاره داسې نور شیان هم پیدا کړي او پیدا کوي یې چې له هغو څخه اوس تاسې بې خبره یئ، په دغه کې هغه ګرد د سورلی شیان داخل شول چې تر قیامته به جوړیږي.

﴿وَعَلَى اللَّهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ﴾

او خاص پر الله دی بیان د لارې (برابرې) او ځینې د لارو څخه کږې مائلې هم دي (له حقه).

تفسیر: یعنې هغه شانې چې د ځمکې د لارې پرې کولو او د مقصود تر منزل پورې د رسېدلو وسائل یې در برابر کړي دي؛ همداسې تر الله پورې د رسېدلو سمه لاره یې هم در پرانستلې ده، د هر چا چې پوهه او عقل سم وي؛ نو هغه د پاس مذکورو شویو دلائلو او بصائرو کې له غور کولو څخه د الله تعالی پر قدرت او عظمت او جبروت به ایمان راوړي، او د توحید او تقوی په سمه لاره بې له خرخشې (خطرې) تر الله پورې رسیږي، لیکن د هر چا چې عقل سم نه وي؛ نو پر دغه سم سړک باندې به د تللو توفیق له کومه وموندلی شي؟ دی به تل د اهواوو او اوهامو په پیچدارو لوړو او ژورو کې لالهانده او سرګردانه ګرځي: ﴿وَأَنَّ هَٰذَا صِرَاطِي مُسْتَقِيمًا فَاتَّبِعُوهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَن سَبِيلِهِ﴾ (۸ جزء د الأنعام سورت (۱۵۳) آیت (۱۹) رکوع).

﴿وَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ ۝٩﴾

او که اراده فرمایلې وی (الله د هدایت ستاسې)؛ نو خامخا سمه برابره لاره به یې ښوولې وه تاسې ټولو ته.

تفسیر: یعنې الله تعالی له دې خبرې څخه نه دی عاجز؛ چې ګرده (ټوله) دنیا په همغه یوه لاره کې ولګوي، لکن د ده حکمت مقتضي نه دی چې ګرد (ټول) د یوه اصول په اختیارولو باندې مجبور کړي، لکه چې مونږ پخوا له دې نه په متعددو مواقعو کې د هغه تشریح کړې ده.

﴿هُوَ الَّذِي أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً ۖ لَّكُم مِّنْهُ شَرَابٌ وَمِنْهُ شَجَرٌ فِيهِ تُسِيمُونَ ۝١٠﴾

الله هغه (ذات) دی چې نازلې کړې، رالېږلې (یې) دي له (طرفه د) اسمانه اوبه، چې دي تاسو ته له دې اوبو څخه څښل او (زرغونوي) له دغو اوبو څخه ونه (او واښه) هم چې په دغو وښو کې څروئ تاسې (حیوانات خپل).

﴿يُنبِتُ لَكُم بِهِ الزَّرْعَ وَالزَّيْتُونَ وَالنَّخِيلَ وَالْأَعْنَابَ وَمِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝١١﴾

زرغونوي (الله) تاسې ته په دغو اوبو سره کښت (فصل) او زیتون او خرما ګانې او (تاکونه د کورو) انګورو او له هر قسمه مېوو څخه، بېشکه په دغه (زرغونتیا د دغو مذکوره وو اشیاوو) کې خامخا لویه نښه (د قدرت) ده لپاره د (هغه) قوم چې فکر کوي (په کې).

تفسیر: یعنې له یو رنګ اوبو څخه راز راز (قسم قسم) مېوې زرغونوي، چې د هغو شکل او صورت او رنګ او رائحه او خوند او تاثیر بیخي بېل دي، په دغه کې غور کوونکي ته د الله تعالی د کامل قدرت او غریبه صنعت لویې نښې دي، چې له یوې ځمکې، یو لمر، یوې هوا او یوه رنګ اوبو څخه څرنګه ډول ډول ګلان او مېوې تل پیدا کیږي؟.

وَسَخَّرَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُوْمُ مُسَخَّرٰتٌ بِاَمْرِهٖ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۱۲﴾

او مسخّره کړې یې ده (په کار یې لګولې ده) تاسې ته شپه او ورځ او لمر او سپوږمی او ستوري مسخّرې (په کارونو کې لګولي شوي) دي په امر (حکم) د دغه (الله) سره، بېشکه په دغو (علویه وو تصرّفاتو) کې خامخا ډېر دلائل د یووالي د الله تعالی لپاره د (هغه) قوم چې عقل چلوي.

**تفسیر:** شپه او ورځ برابر یو له بله سره نښتې دي؛ څو دنیوي کاروبار پرې وچلیږي، او خلق سکون او آرام ترې حاصل کړي شي، همداسې لمر او سپوږمی هم تر یوه معیّن نظام لاندې راښکاري او پټیږي، د شپې او د ورځې د دغه تګګ او راتګګ او د شمس او قمر د دغه ختلو او پرېوتلو سره د انسانانو بېشماره فائدې تړلې دي، بلکه که په غورسره ولیده شي؛ نو بې له دغو څخه د انسان ژوند محال دی، الله تعالی پخپل کامل اقتدار سره لمر، سپوږمی او نور ګرد ستوري یې د ادنی مزدورانو په شان څمونږ په کارونو کې لګولي دي، مجال نشته چې دوی لږ څه سستي وکړي، یا غاړه ترې وغړولی شي، لیکن څرنګه چې له لمر او سپوږمی سره څمونږ اړه بالکل په صریح ډول متعلقه ده، او له نورو ستوریو سره څمونږ د فائدو او مصالحو تعلّق دومره واضح نه دی؛ نبایي د همدې لامله هغه یې بېل کړل، او تر بل عنوان لاندې یې بیان وفرمایل، والله أعلم.

وَمَا ذَرَاَ لَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُخْتَلِفًا اَلْوَانُهٗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّذَّكَّرُوْنَ ﴿۱۳﴾

او (مسخر کړي یې دي نور) هغه څیزونه چې پیدا کړي غوړولي دي (الله) تاسې ته په ځمکه کې حال دا چې مختلف دي سره رنګونه (شکلونه او قسمونه) د دوی، بېشکه په دغه (اختلاف د اشکالو، اقسامو، انواعو د مخلوقاتو) کې خامخا دلیل دی لپاره د هغه قوم چې پند اخلي.

**تفسیر:** یعنې هغه لوی او لوړ ذات چې اسماني شیان یې ستاسې پکار لګولي دي؛ همغه ستاسې د فائدې لپاره په ځمکه کې هم مختلف قسم نباتات پیدا کړي دي، چې په ماهیت ـ شکل ـ صورت ـ رنګګ ـ بوی منافع او خواصو او نورو ګرده کې یو له بل سره بالکل جلا (جدا) او علیحده دي، په دغه کې ګرد حیوانات، نباتات، جمادات، بسائط او مرکبات شامل شول.

وَهُوَ الَّذِيْ سَخَّرَ الْبَحْرَ لِتَاْكُلُوْا مِنْهُ لَحْمًا طَرِيًّا وَّتَسْتَخْرِجُوْا مِنْهُ حِلْيَةً تَلْبَسُوْنَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ مَوَاخِرَ فِيْهِ وَلِتَبْتَغُوْا مِنْ فَضْلِهٖ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۴﴾

او الله هغه (ذات) دی چې مسخر کړی (په کار یې اچولی) دی بحر لپاره د دې چې وخورئ تاسې له دې (بحره) غوښه تازه، او راوباسئ تاسې (په غوپه وهلو سره) له دغه (بحره) ګاڼه، چې اغوندئ یې تاسې، او وینې به ته (ای کتونکیه !) بېړۍ رهي (روانه) په دغه (بحر) کې (چې څیروي په تېر خپل اوبه)، او چې طلب کړئ تاسې (رزق) له فضله د دغه (الله)، او لپاره د دې چې شکر وباسئ تاسې (پر دغو نعمتونو).

**تفسیر:** یعنې داسې موج او څپې وهونکی خوفناک سمندر یې هم (چې د هغه په مقابل کې د ضعیف البُنیان انسان بساط هیڅ نه دی) ستاسې په کار کې لګولی دی، چې په هغه کې بې تکلّفه د ماهیانو (کبانو) ښکار کوئ، او ډېره لذیذه او ترو تازه غوښه ترې حاصلوئ، د هغه د ځینو برخو څخه مرغلرې، درمرجان، حجر البحر، او نور راز راز (قسم قسم) پیداوار پیدا کوئ، چې له هغو څخه ډېرې قیمتدارې ګاڼې او زېورات تیارېږي.

ښه ! د سمندر دغو لويو موجو او څپو ته وګورئ ! چې د هغه په مقابل کې د ډېرو لويو لويو جهازونو حقيقت د يوه خس او واښه په شان هم نه دى، ليکن يوه وړوکې کشتۍ او بېړۍ څرنګه دغه موجونه څيروي؟ او پرې درومي؟ دا د الله تعالى د قدرت يوه نمونه ده، چې انسان ته يې عقل ورکړى دى، او د داسې شيانو د جوړولو ترکيب يې وربښوولى او پوهولى يې دى؛ چې د هغه په ذريعه سره تاسې پر سمندرونو باندې متصرّف او له يوه سره تر بل سره پورې ځئ.

وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ وَأَنْهَارًا وَسُبُلًا لَّعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿١٥﴾

او غورځولي (پيدا کړي) يې دي په ځمکه کې غرونه (مېخونه محکم) لپاره د دې چې ونه ښوريږي پر تاسې باندې، او (پيدا کړي دي الله په دې ځمکه کې) ويالې او لارې لپاره د دې چې لاره وموميئ (خپلو منازلو او مقاصدو ته).

تفسير: يعنې الله تعالى پر ځمکه ډېر درانه لوى لوى غرونه اېښي دي، څو ځمکه د خپل اضطرابي حرکت څخه کراره (قلاره) شي، له رواياتو او آثارو څخه معلوميږي چې ځمکه د خپل خلقت په ابتداء کې مضطربه او بې واکه خوځېده، او در ګرده لړځېده، الله تعالى پر هغې باندې غرونه پيدا کړل، چې د هغو د درونوالي په اثر د ځمکې هغه خوځېدل ورک شول، د نن پرون «ساينس» هم اقرار کړى دى؛ چې د غرونو وجود تر ډېره حده پورې د زلازلو له کثرته مانع دى، په هر حال د ځمکې د هغه حرکت او سکون مسئله چې په حکماوو کې مختلف فيه ده، له هغه سره دا آيت نفياً يا اثباتاً هيڅ تعلّق نه لري؛ ځکه چې د غرونو په وسيله کوم حرکت چې بند شوى دى؛ هغه دا وضعي حرکت نه دى، چې په هغه کې اختلاف جاري دى.

وَعَلَامَاتٍ ۚ وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ ﴿١٦﴾

او (پيدا کړي دي الله په ځمکه کې) علامې، (د لارې) او په ستوريو سره دغه لاره مومي.

تفسير: يعنې غرونه، چينې، ونې، د شګو غونډۍ، الغرض د مختلفو اقسامو علايم يې قائم کړي دي، چې د هغو په وسيله د مسافرانو قافلې د سمې لارې سراغ او نښه موندلى شي، ما پخپلو سترګو ليدلي چې ځينو اعرابو (بدوانو) د خاورې په بويولو سره د لارو نښې پيدا کړې.

﴿وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ﴾ يعنې د شپې په وخت کې لويو سيندونو او لويو بيابانونو په سفر کې د ځينو ستوريو په ذريعه د لارې درک او طرف معلومولى شي، هغه لاربښوونه چې د قُطب نما او نورو آلاتو په وسيله کيږي؛ هغه هم بالواسطه له ستوري سره تعلق لري.

أَفَمَن يَخْلُقُ كَمَن لَّا يَخْلُقُ ۗ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٧﴾

آيا هغه (ذات چې هر شى) پيدا کولى شي (چې الله دى)؛ په شان د هغه دى چې نشي پيدا کولى (هيڅ شيز)؟ آيا نو پند نه اخلئ تاسې (چې خالق او مخلوق سره وپېژنئ، او په خالق ايمان راوړئ؟).

تفسير: يعنې فکر کول په کار دي چې دغه څومره حماقت دى، هغه شيان چې د مچ يو وزر يا د ماشي يوه پښه بلکه د اوربشې يوه دانه يا د شګې د يوه بڅرکي په پيدا کولو هم قادر نه وي؛ د هغوى معبود او مستعان درول دغه الله قدّوس سره يې برابرول چې د پاس مذکورو عجيبو او غريبو مخلوقاتو هم پيدا کوونکى او د هغوى د محکم نظام هم قائم ساتونکى دى، ډېره لويه بې ادبي ده.

وَإِن تَعُدُّوا نِعْمَةَ اللَّهِ لَا تُحْصُوهَا ۗ إِنَّ اللَّهَ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٨﴾ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ﴿١٩﴾

او كه وشمېرئ تاسې نعمتونه د الله (چې پر تاسو يې پېرزو كړي دي)؛ نو نه به يې شئ شمېرلئ (نو څرنګه به يې شكر اداء كړى شئ)؟ بېشكه چې الله خامخا ښه بخښونكى ډېر رحم كوونكى دى. او الله ته معلوم دي هغه (عقائد) چې پټوئ يې تاسې او هغه (اعمال) چې ښكاره كوئ يې تاسې.

وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَا يَخْلُقُونَ شَيْئًا وَهُمْ يُخْلَقُونَ ﴿٢٠﴾

او هغه معبودان چې يې بولي (عبادت يې كوي دغه كفار) غير له الله نه؛ نشي پيدا كولى دوى هيڅ څيز حال دا چې دوى پخپله (هم) پيدا كړى شوي دي.

**تفسير:** يعنې الله خو هغه ذات دى؛ چې د هغه د عظيم الشان او غير محصور انعاماتو څه تذكره پاس وشوه، اوس د مشركانو حماقت ملاحظه كړئ ! چې د داسې الله عالم الكل او خالق الكل سره داسې شريک نيسي؛ چې نه خو داسې شيان پيدا كولى شي، بلكه آن د وښو د يوه ډكي په پيدا كولو باندې هم قادر نه دي، بلكه پخپله د دوى وجود هم د پاک الله په مشيت او ارادې سره پيدا شوي دي.

أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ ۖ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ ﴿٢١﴾

(دغه معبودان پخپله) مړه دي، نه دي ژوندي، او (په دې هم) نه پوهيږي دغه (معبودان) چې كله به راولاړاوه شي دغه (بُتان يا عابدان يې).

**تفسير:** يعنې ماسوا د الله تعالى څخه د هغو بُتانو عبادت چې تاسې كوئ؛ هغه ګرد مړه دي، اعم له دې نه چې دواماً وي لكه بُتان، يا في الحال وي لكه هغه بزرګان چې مړه شوي دي او د هغوى طاعت او عبادت كولى شي، يا د انجام او مآل په اعتبار مړه وي؛ لكه مسيح روح القدس او د الله تعالى ملائكې عليهم السلام؛ چې د هغو عبادت به هم ځينو فرقو كاوه، بلكه پيريان او شيطانان (چې ځينې ممسوخ الفطرت د هغوى عبادت هم كوي)، پر دغو ګردو باندې په يوه وخت كې موت طاري كېدونكى دى، نو د هغه شي وجود چې د بل شي څخه عطاء شوى وي، او هغه هر وخت چې وغواړي اخيستى يې شي؛ نو هغه ته څرنګه الله ويلى شي؟ او څرنګه د عبادت لايق كېدى شي؟.

﴿وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾ يعنې دغه خو عجيب معبودان دي، چې له سره نه دي خبر چې قيامت به كله راځي؟ پخپله دغه معبودان يا د دوى عابدان به كله د حساب او كتاب لپاره بيا ژوندي كيږي؟ دغسې بېځايه او بې خبره شيانو ته معبود ويل، انتهايي درجه جهل او حماقت دى.

إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۚ فَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ قُلُوبُهُم مُّنكِرَةٌ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ﴿٢٢﴾

معبود ستاسې معبود يو دى، نو هغه (كسان) چې نه راوړي ايمان په (ژوندانه د) آخرت زړونه د دغو (بې ايمانو) منكر دي (له وحدانيت د رب العزّت او له راتللو د آخرت)، او دوى تكبّر كوونكي دي (له ايمان راوړلو نه).

**تفسير:** يعنې هغه دلائل او شواهد چې پاس بيان شول، داسې صاف او واضح دي چې په هغو كې له ادنى غور كولو سره هر انسان پر توحيد يقين كولى شي، ليكن ښايي چې غور او طلب هغه څوک وكړي چې ورسره د خپلې خاتمې فكر او د عاقبت وېره وي، او هغه چې د بعد الموت په امورو باندې له سره يقين نه لري؛ نو د آخرې خاتمې په لوري به يې

څه فکر وي؟ هغه پر دلائلو کله غوږ ږدي؟ او د کفر او د ایمان د نېک او بد انجام په لوري به کله التفات کوي؟ بیا په زړونو کې د توحید اقرار او د انبیاوو علیهم السلام د تابعدارۍ خیال کله د دوی په مغزو کې ګرځي؟.

لَا جَرَمَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ۭ اِنَّهٗ لَا يُحِبُّ الْمُسْتَكْبِرِيْنَ ﴿٢٣﴾

رښتیا واقعي خبره داده: بېشکه الله ته معلوم دی هغه (مکر او فرېب) چې پټوي يې دوی، او هغه (جنګ او جګړه) چې ښکاره کوي يې، بېشکه چې دغه (الله) نه خوښوي تکبّر کوونکي (سر غړوونکي له وحدانیت او رسالت او آخرت).

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ مَّاذَآ اَنْزَلَ رَبُّكُمْ ۙ قَالُوْٓا اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٢٤﴾

او کله چې وویلی شي دغو (متکبّرانو) ته څه شی دی هغه چې نازل کړی لېږلی دی رب ستاسې (په محمد باندې)؟ نو وايي دوی (دغه) خوشې افسانې د پخوانیو (خلقو) دي.

تفسیر: يعني که ناواقفه سړی د تحقیق په غرض - یا واقف سړی امتحاناً له دغو مکذبینو څخه پوښتنې کوي، یا دغه مکذبین پخپلو منځونو کې یو له بل سره د تمسخر او استهزاء په ډول سوال کوي: «وواېئ ستاسې رب څه شی نازل کړی دی؟» مطلب يې دا دی چې دغه قرآن چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې د پاک الله له لوري منزّل بولي؛ ستاسې په نزد څه شی دی؟ او محمد صلی الله علیه وسلم په دغه دعوی کې تر کوم ځای پورې صادق دی؟ نو دوی وايي: (معاذ الله) په قرآن کې نور څه شته؟ ماسوا له دې نه چې د پخوانیو کتابونو او پخوانیو ملتونو څه قدیمي بې سنده (د توحید - نبوّت - جنّت - دوزخ - او نورې) خبرې (استغفر الله) او څو قصې په کې نقل شوي دي، او نعوذ بالله له سره د پاک الله کلام نه دی.

لِيَحْمِلُوْٓا اَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَّوْمَ الْقِيٰمَةِ ۙ وَمِنْ اَوْزَارِ الَّذِيْنَ يُضِلُّوْنَهُمْ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۭ اَلَا سَاۗءَ مَا يَزِرُوْنَ ﴿٢٥﴾

(نو الله فرمایي) لپاره د دې چې په شا واخلي پېټي (د ګناهونو) خپلو پوره په ورځ د قیامت کې او (همداسې واخلي) له پېټي (د ګناهونو) د هغو (کسانو) چې ګمراه کړي دي دوی هغوی لره په ناپوهی، واورئ خبردار شئ چې بد دی هغه څیز چې باروي يې دوی (پر شاګانو خپلو).

تفسیر: يعني له دغې وینا څخه دغه غرض دی؛ چې معاذ الله لوی قرآن بې وقعته او بې اهمیته ښکاره کړي، او خپل نور ملګري هم بې لارې کړي، او په دې ډول سره د خپل کفر او ضلال له پوره درانه پېټي سره د هغو خلقو د اضلال او اغواء څه نور بار هم پرې بار کړي چې دوی يې ګمراهان کوي، خیال وکړئ چې دوی د بدۍ څومره یو دروند بار پخپلو سرونو باندې بار کړی دی؟.

قَدْ مَكَرَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتَى اللّٰهُ بُنْيَانَهُمْ مِّنَ الْقَوَاعِدِ فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿٢٦﴾

په تحقیق مکر کړی وو (له رسولانو سره) هغو (کسانو) چې (تېر شوي) دي پخوا له دوی نه؛ نو راغی (حکم د) الله (په خرابولو او چپه کولو) د بناګانو د دوی له تاداوونو، نو پرېوت پر دوی چت (د کوټو د دوی) له پاسه د دوی، او راغی دوی ته عذاب له هغه طرفه چې نه پوهېدل دوی (پرې چې له دې طرفه به راځي عذاب).

تفسیر: یعني د خلقو گمراه کولو او د حق د پیغام د ښکته کولو او نه رسولو کوم تدابیر چې نن ورځ کیږي، له دوی نه پخوا ړومبنیو اقوامو هم د انبیاوو علیهم السلام په مقابل کې همداسې تدابیر کړي وو، هغوی د مکر او تلبیس ډېر لوی عمارات درولي وو، بیا څه مهال چې د الله تعالی حکم ورسېد؛ نو د هغه نیول د دوی بنیادونه هم سره وخوځول، بالآخر د الله تعالی په یوه خوځولو سره د دوی دغه تیارې شوې مانۍ او محال پر همدغو باندې داسې ولوېدې چې دوی د هغه تر چت لاندې بند پاتې شول، مطلب دا چې د دوی دغه تدابیر پر همدوی واوښتل، او هغه سامان او وسائل چې دوی د خپلې غلبې او حفاظت لپاره تیار کړي وو؛ د دوی د فناء او هلاک سبب وگرځېدل، بلکه د ځینو اقوامو ښارونه او کلي په حسّي ډول سره هم لاندې باندې کړل شول.

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُخْزِيْهِمْ وَيَقُوْلُ اَيْنَ شُرَكَآءِىَ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تُشَآقُّوْنَ فِيْهِمْ ؕ قَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ اِنَّ الْخِزْيَ الْيَوْمَ وَالسُّوْٓءَ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۷﴾

بیا په ورځ د قیامت کې به (الله وشرموي) رسوا کړي دوی او وبه فرمايي (الله) چې: چېرته دي شریکان ځما (په زعم ستاسې سره) هغه چې وئ تاسې چې مخالفت به مو کولو (له انبیاوو او مؤمنانو سره) په باب د دوی کې؟ وبه وايي هغه کسان چې ورکړی شوی دی دوی ته علم (یعني ملائک ـ انبیاء ـ علماء) چې: بېشکه خواري د نن ورځې او بدي يې پر کافرانو ده.

تفسیر: یعني د هغو شرکاوو په مرسته او حمایت چې تاسې تل ځمونږ له انبیاوو سره جنگ او جگړې کولې؛ هغوی نن چېرې دي؟ او ستاسې د مدد لپاره ولې نه راځي؟.

﴿هَلْ يَنْصُرُوْنَكُمْ اَوْ يَنْتَصِرُوْنَ﴾ (۱۹ جزء د الشعراء سورت (۹۳) آیت (۵) رکوع).

﴿فَمَا لَهٗ مِنْ قُوَّةٍ وَّلَا نَاصِرٍ﴾ ( (۳۰ جزء د الطارق سورت (۱۰) آیت (۱) رکوع)، دغسې وینا سره په واقع کې د هغوی شرمول او رسوا کول مراد دي، او د دوی د پټو مکاریو پرده لرې کول دي.

﴿اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ﴾ (۴ جزء د آل عمران سورت (۱۹۲) آیت (۲۰) رکوع).

﴿قَالَ الَّذِيْنَ﴾ الآیة ـ یعني هغوی به څه ځواب ورکړی شي؟ هو ! انبیاء علیهم السلام او نور باخبره خلق به په دغه وخت دغو مکارانو او دغا بازانو ته دغه خبره اوروي چې وگورئ ! هغه شیان چې مونږ به ویل همغسې وشو، او د نن ورځې گردې خرابۍ او رسوايي یواځې د حق د منکرینو لپاره دي.

الَّذِيْنَ تَتَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۪ فَاَلْقَوُا السَّلَمَ مَا كُنَّا نَعْمَلُ مِنْ سُوْٓءٍ ؕ بَلٰٓى اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۸﴾ فَادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿۲۹﴾

هغه (کافران) چې قبضوي (ارواح د) دوی ملائکې په دې حال کې چې ظلم کوونکي دي دوی په نفسونو ځانونو خپلو (په کفر سره)، نو وراندې به کړي روغه (اطاعت او وبه وايي) نه وو مونږ چې عمل به مو کولو د هیڅ قسم بدی، (نو وبه فرمايي الله): بلکه کولو تاسې معصیت بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغه څه چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې). (نو وبه ویلی شي دغو ظالمانو ته) چې ننوځئ اوس تاسې په دروازو د دوزخ کې چې همېشه اوسئ په هغه کې؛ نو خامخا بد ځای د هستوگنې د متکبّرانو (دا دوزخ دی).

تفسیر: یعنې کفر او شرک یې اختیار او پخپل حق کې یې خرابي وکړه، آخر په دغه حالت کې د موت پرښتې د دوی د روح کښلو لپاره راغلې، خلاصه دا چې خاتمه یې د کفر او شرک په حالت کې وشوه، العیاذ بالله، نو په دغه وخت کې به دغه ظلام (وړاندې به کړي روغه او اطاعت او وبه وایي: نه وو مونږه چې عمل به مو کولو د هیڅ قسم بدئ)، یعنې په دغه وخت کې به د دوی ګرد تکبر، لویي او ځانمني (خودنمایي) لرې شي، او له هغو ګردو شرارتونو او بغاوتونو څخه چې دوی په دنیا کې کول؛ ځان ناګاره او بېخبره اچوي، او ټپ ترې منکرېږي، او د اطاعت او وفاداری اظهار به کوي، او وایي به چې: مونږ له سره کوم خراب حرکت نه دی کړی، او تل څمونږ افعال او حرکات ښه وو.

﴿يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيَحْلِفُونَ لَهُ كَمَا يَحْلِفُونَ لَكُمْ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ ۚ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ الْكَاذِبُونَ﴾(۲۸ جزء د المجادله سورت (۱۸) آیت دربمه رکوع).

هر کله چې دغه ظالمان د خپلو ښو کارونو مدعیان شي؛ نو وبه فرمایي الله په تردید د دې ویناوو د دوی چې دروغ مه وایئ، یعنې آیا تاسې په درواغ ویلو سره پاک الله غولوئ؟ چې د ده په محیط علم کې ستاسې ګرد حرکات دي، نن ستاسې هیڅ یو مکر او فریب د الله تعالی له سزا څخه نه پاتې کیږي، اوس هغه وخت راغلی دی؛ چې تاسې په کې د خپلو اعمالو خوند وڅکئ.

وَقِيلَ لِلَّذِينَ اتَّقَوْا مَاذَا أَنزَلَ رَبُّكُمْ ۚ قَالُوا خَيْرًا ۗ لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ ۚ وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ ۚ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ ﴿٣٠﴾

او وبه ویل شي هغو کسانو ته چې ځان یې ساتلی له شرکه (او ویریږي له الله) چې څه شیز دی هغه چې نازل کړی دی رب ستاسې؟ نو وایي دغه (مؤمنان) چې خیر، شته هغو کسانو ته چې نیکي یې کړېده (په ایمان راوړلو سره) په دغه دنیا کې نېکه جزا (چې عزت او نصرت دی)، او خامخا کور د آخرت (جنّت) خیر غوره دی (له دنیا او ما فیها څخه)، او خامخا ډېر ښه سرای د پرهېزګارانو دی.

تفسیر: دغه د مستکبرینو په مقابل کې یې د متّقینو (پرهېزګارانو) حال بیان فرمایلی دی، چې کله د هغوی څخه د لوی قرآن په متعلق پوښتنې کیږي چې ستاسې رب څه شی نازل کړی دی؟ نو له نهایتې ښې عقیدې او آدابو به ووایي چې: «څمونږ پاک الله داسې نېکه خبره رانازله کړې ده؛ چې له سره تر پایه پورې په کې خیر او برکت دی»، داسې خلقو لره دې معلوم وي، چې دوی خورا (ډېر) ښه کار کوي، په دنیا کې به د همغې نېکۍ خوندوره ثمره ورسیږي، او د الله تعالی په دربار کې د هیڅا محنت او د یوې ذرې قدر نیکي هم نه ضایع کیږي، او خامخا سرای د آخرت (جنت) ډېر غوره خیر دی له دنیا او ما فیها نه.

جَنَّاتُ عَدْنٍ يَدْخُلُونَهَا تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۖ لَهُمْ فِيهَا مَا يَشَاءُونَ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْزِي اللَّهُ الْمُتَّقِينَ ﴿٣١﴾

جنتونه دي د همېشه اوسېدلو چې ننوځي به دوی (په) هغو کې، چې بهیږي به له لاندې (د ونو او ماڼیو) د دوی (څلور قسمه) ویالې، چې وي به (تل) دوی ته په دغو باغونو کې هر هغه (نعمتونه) چې غواړي یې دوی، په شان د دغې (جزاء) جزاء ورکوي الله پرهېزګارانو ته.

تفسیر: یعنې د آخرت د ښېګڼو او نعمتونو پوښتنه څه کوئ، چې هلته دومره حسنات او نعماء شته چې د هغو د ډېر یو وړوکي نعمت په مقابل کې د دنیا خورا (ډېر) لوی نعمت هیڅ دی، جنتیان چې هر قسم جسماني او روحاني مسرّت وغواړي؛ هلته به ور رسي: ﴿وَفِيهَا مَا تَشْتَهِيهِ الْأَنفُسُ وَتَلَذُّ الْأَعْيُنُ ۖ وَأَنتُمْ فِيهَا خَالِدُونَ﴾.

الَّذِيۡنَ تَتَوَفّٰهُمُ الۡمَلٰٓـئِكَةُ طَيِّبِيۡنَ ۙ يَقُوۡلُوۡنَ سَلٰمٌ عَلَيۡكُمُۙ ادۡخُلُوا الۡجَـنَّةَ بِمَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۳۲﴾

هغه (كسان) چې قبضوي ارواح د دوى ملائكې په دې حال كې چې پاك دي دغه (متقين له شركه او معصيته)؛ وايي به دغه (ملائك دوى ته چې) سلام دې وي پر تاسې باندې، ننوځئ ! جنت ته په سبب د هغو نېكيو چې وئ تاسو چې عمل به مو كولو (په دنيا كې).

هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ تَاۡتِيَهُمُ الۡمَلٰٓـئِكَةُ اَوۡ يَاۡتِىَ اَمۡرُ رَبِّكَ ؕ

آيا انتظار كوي دغه (كفّار، بلكه نه كوي د هيڅ څيز) مگر د دې چې راشي دوى ته ملائكې (د عذاب لپاره د قبض الروح) يا راشي ورته امر (حكم) د رب ستا (لپاره د اهلاك د دوى)؟.

**تفسير:** يعني دغه خلق د دې خبرې انتظار كې دي؛ څه مهال چې پرښتې د دوى د روح قبضولو لپاره راشي، يا د الله تعالى له حكمه سره موافق قيامت قائم شي، يا د مجرمينو د جزا وركولو حكم ور ورسيږي، او په موچنهو او پنهو د دوى سر وواهله شي؛ نو هلته به ايمان راوړي، او خپل حال به اصلاح كړي، حال دا چې د هغه وخت ايمان يا توبه او رجوع به له سره نافع نه وي، بهتر خو دا دى چې پخوا له موته د بعد الموت لپاره تيارى وشي ! او پخوا د عذاب له راتگه (راتلو) د نجات تدبير وشي !.

كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ وَلٰـكِنۡ كَانُوۡۤا اَنۡفُسَهُمۡ يَظۡلِمُوۡنَ ﴿۳۳﴾ فَاَصَابَهُمۡ سَيِّاٰتُ مَا عَمِلُوۡا وَحَاقَ بِهِمۡ مَّا كَانُوۡا بِهٖ يَسۡتَهۡزِءُوۡنَ ﴿۳۴﴾

په شان د دغې (كفر او تكذيب) كړې وو (شرك او تكذيب) هغو كسانو چې پخوا له دوى تېر شوي وو، (پس رسېدلى وو دوى ته هغه شى چې رسېدلى وو هغوى ته)، او نه وو ظلم كړى پر دوى الله (په اهلاك سره)، وليكن وو دوى چې په نفسونو (ځانونو) خپلو باندې يې ظلم كولو (په كفر او معاصيو). نو ورسېده دوى ته جزاء د هغو بديو چې كړې وو دوى، او احاطه وكړه (چاپېر شو) پر دوى هغه (موعود عذاب) چې وو دوى چې په هغه (عذاب پورې) به يې مسخرې كولې.

**تفسير:** پخواني معاندين هم د همداسې غرور او غفلت په نشو كې لويدلي وو، او په باطل خوښولو كې بوخت (مشغول) او لگيا وو، او تمادي يې په كې كوله، او د توبې په وخت كې يې توبه ونه ايستله، او تر آخره پورې د انبياوو عليهم السلام پر تكذيب او مخالفت ټينگ ولاړ وو، او د هغوى پر خبرو به يې خندل، او مسخرې به يې كولې، بالآخر څه يې چې كړي وو، همغه يې په مخه كې ورغلل، او جزاء يې وموندله، هغه عذاب او نور شيان چې دوى پرې مسخرې كولې؛ پخپلو سترگو يې وليدل، د دوى هغه مسخرې او خندا معكوساً (الټه) پر همدوى واقع شوې، او هيڅ يوه د تېښتې لاره يې ونه مونده چې پرې چېرې وتښتي، او د خپلو شرارتونو او سركښيو سزا يې وموندله، او هغه يې ورېبل چې كرلي يې وو.

وَقَالَ الَّذِيۡنَ اَشۡرَكُوۡا لَوۡ شَآءَ اللّٰهُ مَا عَبَدۡنَا مِنۡ دُوۡنِهٖ مِنۡ شَىۡءٍ نَّحۡنُ وَلَاۤ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمۡنَا مِنۡ دُوۡنِهٖ مِنۡ شَىۡءٍ ؕ

او وويل هغو كسانو چې شرك يې اختيار كړى وو: كه اراده فرمايلې وى الله؛ نو عبادت به نه وو كړى مونږ غيرله دغه (الله) د هيڅ څيز، (نه) مونږه او نه پلرونو ځمونږ، او نه به حرام كړى وو مونږ بې له حكمه د دغه (الله) هيڅ څيز.

تفسیر: له دې ځایه وروسته د هغو باطلو اعذارو او چټي (بېکاره) او مهملو خبرو او دلائلو تردید شروع کېږي؛ چې مشرکینو هغه د خپل شرک او مشرکانه اعمالو د جواز او استحسان د ثابتولو لپاره وړاندې کول.

خلاصه يې دا ده: که د غیر الله عبادت یا د ځینو حیواناتو (لکه بحیره ـ سائبه او نور) حراموال داسې بد او بې سنده خبرې او چارې وی چې بېخي پاک الله نه خوښولې؛ نو الله به مونږ نه پرېښودو چې یې وکړو، او هر کله چې مونږ د الله تعالی له مرضی څخه مخالف کار کولو؛ نو خامخا به پاک الله مونږ له هغه څخه منع کولو، یا به یې مونږ ژر تر ژره په سزا رسولو، کله چې داسې نه کېږي؛ نو دغه د دې خبرې دلیل دی چې دغه چارې د الله تعالی خوښې دي.

د الأنعام سورت په (۱۴۸) آیت (۱۸) رکوع د ﴿سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ﴾ الآیة ـ تر آیت لاندې ځمونږ د دغه مبارک تفسیر کوم تقریر چې مونږ کړی دی، په هغه کې د مشرکینو دغه شبهه او د هغو مفصل ځواب بیان شوی دی، ښایي چې هغه دې بیا هلته ولوستل شي.

كَذَٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿٣٥﴾

په مثل د دغه (عمل) کړی وو هغو کسانو چې پخوا له دوی (تېر شوی) وو، نو آیا شته پر رسولانو (بلکه نشته پرې هیڅ) مګر رسونه ښکاره (چې سمه صافه لاره خلقو ته وروښیي).

تفسیر: یعني د مشرکینو دغه وینا غلطه ده، چې ځمونږ دغه اعمال د الله تعالی له لوري نه دي ممنوع شوي، ځکه چې د خلقت له ابتداء څخه تر نن ورځې پورې له ضرورت او مصلحت سره موافق پاک الله انبیاء علیهم السلام لېږلي دي، چې د هغوی کار او وظیفه همدغه وه چې خلق له شرکیه وو اعمالو او له شرک او کفر څخه منع کړي، او په ښکاره او صاف ډول سره اعلان وکړي چې کوم کوم اعمال د پاک الله خوښ او پرې رضا دی؟ کوم کوم افعال یې نه دي خوښ؟ او له دوی ځنې به د هر یوه انجام څرنګه وي؟.

باقي دغه خبره چې خلق یې ولې په تکویني ډول مجبور ونه ګرځول چې له سره یې د بدۍ اختیار نشوی اختیارولی؟ نو دغه خبره د الله تعالی له حکمته سره منافي وه، لکه چې مونږ دغه خبره په متعددو مواضعو کې لیکلې ده، پاتې شوه دغه خبره هر هغه څوک چې د انبیاوو خبرې ونه مني؛ ښایي چې هغه ته سم د لاسه سزا ورکړه شي، نو ډېرو اقوامو ته په دنیا کې سختې عبرتناکې سزاوې هم ورکړی شوي دي، لکه چې په پخواني آیت کې مذکور دي، هو! عقلاً او نقلاً دغه خبره ضروري نه ده چې د جُرم له ارتکاب سره فوراً سزا ورکړه شي، او مجرم ته د یوې شیبې (ساعت) لپاره هم مهلت ورنه کړ شي، او نه ورته د توبې او اصلاح لپاره کومه موقع او فرصت ورکړ شي.

وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ هَدَى اللَّهُ وَمِنْهُم مَّنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ ۚ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿٣٦﴾

او خامخا په تحقیق لېږلي وو مونږ په هر (پخواني) امت کې یو رسول (چې ووایي دوی ته) چې عبادت وکړئ (یوازې) د الله، او ځان وساتئ تاسې له شریرانو (باطلو معبودانو) څخه، نو ځینې له دوی هغه وو چې ورته هدایت وکړ (لاره وروښوده) الله، او ځینې د دوی هغه وو چې ثابته شوه پرې ګمراهي (نو قبول یې نه کړل احکام د رسولانو)، نو وګرځئ تاسې په ځمکه کې (ای مشرکانو!) نو وګورئ چې څرنګه وو عاقبت (آخره خاتمه) د دروغجن ګڼونکو (د انبیاوو؟).

تفسیر: یعني پخپل وخت کې مو په هر امت کې او قوم پخوانیو کې یو رسول مبعوث کړی دی، بیا په آخر کې یې رسول الثقلین، سید الکونین «صلی الله علیه وعلی آله وصحبه أجمعین» را مبعوث کړ.

**تنبيه:** له دغه آيت څخه دا نه لازميږي چې په هر قوم او هر کلي کې دې بلاواسطه يو رسول لېږلی شوی وي، کېدی شي چې يو نبي په يو قوم کې مبعوث کړی شي، او د ده نائب چې ورته «هادي» او «نذير» ويلی شي؛ په نورو اقوامو کې ولېږلی شي، د هغه ورلېږل ګواکې بالواسطه د هغه رسول لېږل دي، والله أعلم.

«طاغوت» شرير فتنه اچوونکی، فساد خوښوونکی، د شاه صاحب په وينا «هغه دی چې په ناحقه سره د سرداری او مشرتوب دعوی وکړي، او هغه هيڅ يو سند يې په لاس کې نه وي، نو داسې سړي ته «طاغوت» وايي، بت، شيطان، لوی ظالم ګرد په دغه کې داخل دي».

إِن تَحْرِصْ عَلَىٰ هُدَاهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَن يُضِلُّ ۖ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٣٧﴾

که ته ډېر حرص وکړې (ای محمده !) پر هدايت (لاره ښوونه) د دوی؛ نو بېشکه چې الله نه ښيي لاره (د هدايت) هغه چا ته چې ګمراه کوي (يې)، او نه به وي دغو ګمراهانو ته هيڅ له مددګارانو (مانع له عذابه).

**تفسير:** يعني پاک الله هر هغه څوک چې د قصور د استعداد يا د بد اختياری په بناء ګمراه (بې لارې) کړی وي؛ هغه ته هيڅوک د هدايت لاره نشي ښودلی، او نه يې هيڅوک د الله تعالی له سزا څخه ژغورلی (بچ کولی) شي، ستاسې دغه ډېره طمعه او زيات حرص هم د دوی د هدايت په نسبت، هيڅ فائده نشي رسولی، نو بيا تاسې د دوی په فکر او غم کې ولې دومره زيات خپل ځان کړوئ؟ او ولې خپل سر دومره زيات ورپسې ګرځوئ؟ .

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَن يَمُوتُ ۚ بَلَىٰ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٨﴾

او قسمونه کوي دوی پر الله په سختو غليظو قسمونو خپلو چې بيا به نه کړي ژوندی الله هغه څوک چې (يو ځلې) مړ شي، (الله فرمايي په ترديد د دوی کې) بلکه ژوندی به يې کړي (څکه چې وعده يې کړې ده) په داسې وعده کولو چې لازمه ده پرې (وفا يې تفضّلاً) وعده حقه، وليکن ډېر د خلقو نه پوهيږي (په دغه بعث بعد الموت).

لِيُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِي يَخْتَلِفُونَ فِيهِ وَلِيَعْلَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ كَانُوا كَاذِبِينَ ﴿٣٩﴾

لپاره د دې چې بيان (او ښکاره) کړي الله دوی ته هغه (حشر او نشر) چې جګړې کوي دوی په هغه کې، او (بل) د دې لپاره چې پوه شي هغه کسان چې کافران شوي دي (په دې خبره چې) بېشکه دوی وو دروغجنان (په دې انکار کې له قيامته).

**تفسير:** يعني د معاد (قيامت) راتګ عين حکمت دی، که وروسته له مرګه بل ژوندون نه وي؛ نو په دنيا کې هغه مختلف اعمال او احوال چې موندلی شي؛ د هغو صاف او مکمل نتائج به څرنګه ظاهريږي؟ د دغه ځای د جګړو قاطعه فيصله خو هم هغلته کيږي، او هلته به منکرينو ته معلوم شي چې د هغو خبرو انکار چې په قسمونو سره دوی کاوه؛ هغه بيخي صحيح او رښتيا وي، او قسم خوړونکي دروغجنان وو.

إِنَّمَا قَوْلُنَا لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْنَاهُ أَن نَّقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٤٠﴾

بېشکه همدا خبره ده، چې خبره څمونږ کوم شيز ته کله چې اراده وکړو (د پيدا کولو) د هغه دا ده چې ووايو هغه ته چې (پيدا) شه؛ نو (پيدا) شي (نو د مړو بيا ژوندي کول هغه ته څه مشکل دي).

تفسير: يعنې له دې نه مقصد يواځې هم دغومره خبره ده، چې د الله تعالی له ارادې څخه د يوې ثانيې لپاره هم د مراد تخلّف نشي کېدی.

﴿وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَأَجْرُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ۝٤١ الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ۝٤٢﴾

او هغه کسان چې هجرت يې کړی دی په (لاره د) الله کې وروسته له هغه چې ظلم پرې وکړی شو؛ نو خامخا ځای به ورکړو مونږ دوی ته په دنيا کې ښه (ځای)، او خامخا اجر ثواب د آخرت ډېر لوی دی، که وی دغه (کفار) چې پوهېدی (په ثواب د هجرت؛ نو دوی به هم ورسره موافقت کړی وی په ايمان يا) که وی دغه (مهاجرين) چې پوهېدی (پخپل هغه لوی اجر؛ نو لا ډېر کوښښ او صبر به يې کولو). (او مهاجرين) هغه کسان دي چې صبر يې کړی دی (په طاعت او په مصيبت) او خاص پر رب خپل توکل کوي.

تفسير: يعنې د مجازاتو د سلسلې لپاره «بعث بعد الموت» ضروري دی، د الله تعالی ښه وفادار بندګان چې په دغې دنيا کې ډېر مصائب او شدائد تيروي او بيا مري؛ نو آيا د دوی دغه قرباني ضايع کېدی شي؟ له سره به نه ضايع کيږي !، هغه چې د حق حمايت وکړ، او د الله تعالی رضاء يې وغوښته، او د ظالمانو د ظلم او ستم په انواعو يې صبر او حوصله وکړه، تر دې حده پورې چې مجبوراً خپل کور، خپلوان، کهول، دوستان، عزت آشنايان، راحت او ګرد شيان يې د الله تعالی په لاره کې پرېښودل؛ نو دوی ته به د هغوی د محنت او وفادارۍ صله يقيناً ورسيږي، اول هغه کسان چې له دوی څخه ژوندي پاتې کيږي؛ نو په همدغې دنيا کې د خپلو قربانيو لږ څه ثمره مومي، او خوند يې څکي، يعنې خپل کور کهول پرېښوونکو ته د هستوګنې نور ډېر ښه ځای ورکاوه کيږي، له هغه کوره ښه کور، له وطنې ورونو څخه ډېر مهربانه خواخوږي نور ورونه، له روزي څخه يې بهتره روزي، له عزته يې ښه عزت وررسيږي، بلکه پر هغو خلقو غالب کيږي، چې دوی يې له وطنه ايستلي دي.

تنبيه: د آيت پر عمومو الفاظو مونږ نظر اچولی دغه تقرير مو وکړ (وهو منقول في روح المعاني عن بعضهم) عامو مفسرينو دغه آيت د هغو اتياوو (۸۰) اصحابو رضي الله تعالی عنهم اجمعين په حق کې ايښی دی، چې د مکې معظمې د کفارو له ظلم او تيرې څخه په تنګ شوي وو، او ړومبی يې (حبشستان) په لورې هجرت کړی وو، ځکه چې د اکثرو په نزد دغه آيت مکي دی، چې د مدينې منورې له هجرته څخه پخوا نازل شوی دی، دغو مهاجرينو ته بالآخر پاک الله د هستوګنې ډېر ښه ځای په (مدينې منورې) کې ورکړ، رضي الله عنهم، ورضوا عنه.

﴿الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾ يعنې له هيڅ راز (قسم) ظلم او تيرې څخه ونه ويرېدل، او د محبوب وطن او د ګرانو خپلوانو او اقاربو د بېلتانه پروا يې ونه کړه، او د الله تعالی د خوښې او رضاء له لارې څخه ونه ښوييدل، او له ګردو څخه يې وشکاوه، او خپله علاقه يې يواځې له پاک الله سره ونښلوله، او خالص د الله پر امداد او قاطعه وو مواعيدو يې اعتماد وکړ، تر هغه پورې چې ويې ليد، هر څوک چې خپل ځان پاک الله ته سپاري، نو پاک الله به څرنګه پرې خپل لطف او کرم نه مبذولوي؟.

﴿وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ فَاسْأَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ۝٤٣ بِالْبَيِّنَاتِ وَالزُّبُرِ وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ۝٤٤﴾

او نه وو لېږلي مونږ پخوا له تا نه (ای محمده) مګر سړي (ستا په شان له انسانانو) چې وحي به کوله مونږ دوی ته، نو پوښتنه وکړئ تاسې له اهل الذکر (خاوندانو د ياد يعنې له علماوو او پوهانو يا له

اهل الکتاب نه) که يئ تاسې چې نه پوهېږئ. (لیږلي وو مونږ دغه رسولان) په ښکاره وو معجزو او په کتابونو سره، او نازل کړی دی مونږ تاته ذکر قرآن (یو) لپاره د دې چې بیان کړې ته خلقو ته هغه چې نازل شوی دی (په دې قرآن کې) دوی ته، او (بل لپاره د دې) چې ښایېږي دوی فکر او غور وکړي (په کې چې دغه کلام الله دی).

تفسیر: یعنې د انبیاوو الله علیهم السلام مظلومانو ملګریو ته چې د صبر او توکل په لاره ثابت قدم وي؛ په دوارو دارینو کې بری او کومک ورکول ځمونږ کوم نوی عادت نه دی، پخوا له دې نه هم مونږ په پخوانیو انسانانو کې رسولان لیږلي دي، چې د هغو کار دا وو؛ چې د الله تعالی له احکامو او د نېکۍ او بدۍ له انجامو خلق خبردار کړي، اوس که تاسې ته دغه خبره نه ده معلومه، نو له هغو پوهانو څخه چې د پخوانیو امتونو پر حالاتو او د هغوی د انبیاوو پر تاریخي معاملاتو علم لرونکي؛ تحقیقات وکړئ! چې آیا په رښتیا سره په تېرو پېړیو کې څه مقدّس انسانان د نبوّت پر لوی منصب فایض شوي دي؟ او سره له بیناتو (معجزاتو) او کتابونو مبعوث شوي دي؟ که نه؟ او دغه چې آیا د هغو د مصدقینو او مکذبینو خاتمه او انجام څرنګه شوی دی؟ او اهل الحق د صبر او توکل په برکت څرنګه منصور او کامیاب شوي دي؟ او ظالمان معاندان وروسته د حجّت له اتمامه څنګه پنا شوي دي؟ . ﴿وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ الْحُسْنَىٰ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَاءِيلَ بِمَا صَبَرُوا وَدَمَّرْنَا مَا كَانَ يَصْنَعُ فِرْعَوْنُ وَقَوْمُهُ وَمَا كَانُوا يَعْرِشُونَ﴾ (۹ جزء د الأعراف سورت (۱۳۷) آیت (۱۶) رکوع).

مونږ له ﴿أَهْلَ الذِّكْرِ﴾ څخه خاص اهل الکتاب نه دي مراد کړي، بلکه د لفظ د عموم رعایت مو کړی دی، چې په هغه کې اهل الکتاب هم شامل دي، محمود الحسن شیخ الهند (رحمه الله تعالی) هم د «أهل الذکر» ترجمه د یاد په خاوندانو کړېده، او ښايي چې په هغه سره يې دې لوري ته اشاره کړې وي.

﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ﴾ الآية ـ یعنې د رسول الله کار د قرآن احکام په ښکاره او واضح ډول بیانول دي، او د خلقو کار دا دی چې په هغه کې غور او فکر وکړي.

له ذکر څخه قرآن عظیم مراد دی، چې پخوانیو امتونو د ضروریه وو احوالو او شرائعو محافظ او د پخوانیو انبیاوو د علومو جامع او د ټل لپاره د الله تعالی د احکامو او د دارینو د فلاح د طریقو باور کوونکی او د غفلت له خوبه ویښوونکی دی، مطلب يې داسې شو: «همغسې چې پخوا له دې نه رسولان لیږلي شوي دي، او کتابونه نازل شوي دي؛ نن تاته هم مونږ همداسې کتاب درلېږلی دی، چې د ګردو پخوانیو کتابونو خلاصه او د سابقینو انبیاوو علیهم السلام د علومو مکمل یاداشت دی، ستاسې کار دا دی چې «د دنیا ګردو (ټولو) خلقو ته د دې کتاب ټول مضامین په صاف او ښکاره ډول بیان کړئ، او د هغه د مشکلاتو شرح او د مجملاتو تفصیل وفرمايئ»، له دې نه معلوم شو چې د پاک قرآن همغه تفسیر معتبر دی؛ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له احادیثو سره موافق وي.

أَفَأَمِنَ الَّذِينَ مَكَرُوا السَّيِّئَاتِ أَن يَخْسِفَ اللَّهُ بِهِمُ الْأَرْضَ أَوْ يَأْتِيَهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٤٥﴾

آیا نو په امن کې شوي دي هغه کسان چې مکرونه يې کړي دي ناکاره؛ له دې نه چې ډوب به کړي الله دوی په ځمکه یا چې را به شي دوی ته عذاب له داسې طرفه چې نه پوهیږي دوی (پرې چې له دې طرفه راځي)؟.

تفسیر: یعنې د پخوانیو انبیاوو او د دوی د امتونو د احوالو د اورېدلو او د قرآن عظیم الشأن په شان د داسې مکمّل ذکر او یاداشت د رسېدلو څخه وروسته هم آیا د مکې معظمې کافران د حق په مقابل کې د خپلو مکاریو او فرېبونو نه مخ نه ګرځوي؟ آیا د دې خبرې امکان نشته چې الله تعالی دوی د (قارون) په شان په ځمکه کې ډوب کړي، یا له داسې

یو جانب څخه کوم آفت پرې ولیږي چې د دوی په وهم او ګمان کې هم نه وي، لکه چې د «بدر» په غزوه کې کفارو ته د مسلمانانو له لاسه داسې سزا ورسېده؛ چې دوی د خپل قوت او جمعیت او د مسلمانانو د ضعف او قلّت په ملحوظ د هغه تصوّر هم نه وو کړی.

أَوْ يَأْخُذَهُمْ فِي تَقَلُّبِهِمْ فَمَا هُم بِمُعْجِزِينَ ﴿٤٦﴾

یا له دې چې ونیسي (الله) دوی لره په وخت د ګرځېدلو د دوی (په ځمکه) کې، نو نه دي دوی عاجز کوونکي (د الله).

تفسیر: یعنې د دې خبرې هیڅ ضرورت نشته چې له پخوا څخه څه اهتمام وکړی شي، یا د مقابلې لپاره څه افواج ولېږلی شي، پاک الله پر دغه هم قادر دی چې تاسې په تګ او راتګ او په کاروبار کې یا پخپلو بسترو په وخت د اوښتلو له یوه اړخ څخه بل اړخ ته یو ځلي ونیسي، او بالکل مو عاجز او ناتوانه کړي، الله هر قسم قوت او قدرت لري، او تاسې په هر ډول عاجزولی شي، او په تاسې کې د دې خبرې توان نشته چې پاک الله عاجز او ناتوان کړئ.

أَوْ يَأْخُذَهُمْ عَلَىٰ تَخَوُّفٍ فَإِنَّ رَبَّكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٤٧﴾

یا (له دې) چې ونیسي (الله) دوی لره پر وېره، نو بېشکه رب ستاسې خامخا ښه مهربان دی (پر بندګانو) ښه رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعنې یو ناڅاپه به یې وانخلي، بلکه له خبرولو څخه وروسته او د عذابونو د مبادیو د لېږلو څخه پس ته به داسې یو حالت کې یې نیسي چې خلق پرې خبر او ترې اطلاع ومومي، او د عذابونو آثار وګوري او طبعاً وویرېږي، یا د شاوخوا نور خلق په سماویه وو عذابونو کې اخته وګوري او په وېره کې وي، لیکن دغه خوف محض طبیعي وي، او د توبې او ندامت سره نه وي چې د عذاب دافع کېدی شي.

ځینو د «تخوّف» معنی «تنقّص» اخیستې ده، چې ورو ورو کمول وي، یعنې دغه هم ممکن دي چې دفعتاً یې هلاک نه کړي، او ورو ورو تاسې کموي او ټیټوي مو.

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَىٰ مَا خَلَقَ اللَّهُ مِن شَيْءٍ يَتَفَيَّأُ ظِلَالُهُ عَنِ الْيَمِينِ وَالشَّمَائِلِ سُجَّدًا لِّلَّهِ وَهُمْ دَاخِرُونَ ﴿٤٨﴾

آیا نه ګورې دوی هغه ته چې پیدا کړي دي الله له کومه څیزه، چې ګرځي سیوري د هغه له ښي طرفونو او کیڼ طرفونو (یعنې له هر طرفه) څخه په دې حال کې چې سجده کوونکي دي (دغه سیوري) الله ته، او حال دا چې دغه سیوري عاجزي کوونکي دي الله ته.

تفسیر: یعنې کله چې په تکویني ډول هر شی د پاک الله په مخ کې عاجز، مطیع او منقاد دی، تر دې چې د سایه دارو شیانو سیوري هم د الله د حکم او د قدرت له قانون سره سم اوږدېږي او لنډېږي، او په دې لوري او په هغه لوري ځي راځي، او الله تعالی ته سجدې کوي؛ نو بیا د داسې قدرت والا د عذاب مخه کوم یو قوت او طاقت نیولی شي؟ هر انسان لره ښایي چې په خپل واک او اختیار د الله تعالی د تشریعي احکامو په مقابل کې غاړه کېږدي.

وَلِلَّهِ يَسْجُدُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ مِن دَابَّةٍ وَالْمَلَائِكَةُ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٤٩﴾

او خاص الله ته سجده کوي هغه شیان چې په اسمانونو کې دي، او هغه شیان چې په ځمکه کې دي له ګرځېدونکو (تلونکو په ځمکه کې) او ملائکې، حال دا چې دوی نه کوي کبر (لویي سرکښي د الله تعالی له عبادته).

﴿يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۩ ﴿٥٠﴾﴾

ويريږي دا (ملائک) له رب خپل له پاسه د دوی وی، او کوي دوی هغه (کار) چې امر (حکم) ورته کولی شي.

**تفسير:** يعني پرښتې سره له دومره قربه او وجاهته د خپل الله تعالى (چې د دوی د پاسه دی) له لويي او له جلاله ويريږي، او هر هغه حکم چې دوی ته ورکولی کيږي؛ هغه على الفور اجرا کوي.

﴿وَقَالَ اللَّهُ لَا تَتَّخِذُوا إِلَٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۖ إِنَّمَا هُوَ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ فَإِيَّايَ فَارْهَبُونِ ﴿٥١﴾﴾

او فرمايلي دي الله مه نيسئ تاسې معبودان دوه، بېشکه همدا خبره ده چې دغه (بر حق معبود) معبود دی يو، نو خاص له ما څخه پس وويرېږئ !.

**تفسير:** يعني کله چې ګرد د اسمانونو او د ځمکو مخلوق د يوه الله جل وعلا په حضور کې په تکويني ډول بې اختياره سر په سجود او ټول ورته عاجز او مقهور دي؛ نو بيا په عبادت کې يې بل شريک له کومه پيدا شو؟ هغه پاک الله چې د ګرد جهان مالک او مطاع دی ښايي چې يواځې د همغه عبادت وکړی شي، او خاص د همغه څخه خوف او ويره پکار ده !.

﴿وَلَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَلَهُ الدِّينُ وَاصِبًا ۚ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَتَّقُونَ ﴿٥٢﴾﴾

او خاص همدغه (الله) لره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او (هر هغه څه چې په) ځمکه کې دي، او خاص همده ته دې طاعت (عبادت عدل) واجب لازم همېشه؛ نو آيا غير له الله څخه ويرېږئ تاسې؟.

**تفسير:** يعني په تکويني ډول هر څيز خاص د الله تعالى په اطاعت او عبادت مجبور دی: ﴿أَفَغَيْرَ دِينِ اللَّهِ يَبْغُونَ وَلَهُ أَسْلَمَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَكَرْهًا وَإِلَيْهِ يُرْجَعُونَ﴾ (۳ جزء د آل عمران سورت (۸۳) آيت (۹) رکوع)، يا دغه مطلب دی چې تل د الله تعالى عبادت لازم دی ﴿أَلَا لِلَّهِ الدِّينُ الْخَالِصُ﴾ (۲۳ جزء د الزمر سورت (۳) آيت (۱) رکوع)، او ځينو د «دين» معنى په «جزاء» سره اخيستې ده، يعنې د نېک او بد دائمي بدل د همغه يوه الله تعالى له جانبه رارسيږي، (نو د بل چا څخه به ولې ويريږو) والله أعلم.

﴿وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللَّهِ ۖ ثُمَّ إِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فَإِلَيْهِ تَجْأَرُونَ ﴿٥٣﴾﴾

او هر هغه څه چې تاسې سره دی له (کوم قسم) نعمت؛ نو له (طرفه د) الله دی، بيا کله چې ورسيږي تاسې ته ضرر نو خاص همدغه (الله) ته فرياد او زاری کوئ.

**تفسير:** يعني ګردې ښېګڼې (فايدې) او نعمتونه د همغه له لوري دي، او د هر يوې بدۍ او سختۍ دفع هم د همغه په واک (اختيار) او قبضه کې ده، لکه چې کوم مصيبت کوم يوه انسان ته ورسيږي؛ نو له غليظ څخه غليظ مشرک هم په دغه وخت کې له نورو ګردو وسيلو څخه لاس وباسي، او يواځې د پاک الله په دربار کې دعاء کوي او ترې مدد غواړي، ګواکې انساني فطرت شاهدي ورکوي؛ چې د مصائبو او سختيو څخه نجات ورکول ماسوا له دې نه چې د پاک واحد الله کار وي، د بل هيچا کار نه شي کېدی.

ثُمَّ إِذَا كَشَفَ الضُّرَّ عَنكُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنكُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴿٥٤﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٥٥﴾

بيا هر كله چې دفع (لرې) كړي (الله هغه) ضرر له تاسې څخه؛ ناڅاپه يوه فرقه له تاسې له رب خپله سره شريكوي. (بل) لپاره د دې چې كفران (ناقدري) وكړي په هغه څيز پورې چې ور كړې دى مونږ دوى ته؛ نو نفع واخلئ (اى منكرينو دنيوي نفع مؤقتاً)، نو ژر به پوه شئ تاسې (په عاقبت د كار خپل).

تفسير: يعني څه مهال چې ترې سختي پورته شي؛ نو خپل حقيقي منعم هېروي، او په نهايت ببحيايي او بې شرمۍ د الوهيت د چارو په وېشلو پسې ولوېږي، او له دې نه نه شرمېږي چې اوس لږ څه د مخه د عجز او نياز په حالت كې د همغه په دربار كې مو عرض او دعاء كوله، نه يې د حقيقي محسن احسان ومانه، او نه يې د د غې اندېښنه وكړله چې زه به د ناشكرۍ په سزا كې ونيول شم، يا لږ تر لږه د نعمت كفران به د نعمت د سلب موجب وګرځي، ګواكې هغه انعام چې «وحده لا شريك له الله تعالى» فرمايلي وو؛ بيخي د هغه په انكار باندې ټينګ ودرېد، بهتر دى چې څو ورځې هغوى ته مهلت ور كړ شي، چې په دغه دنيا كې ښې مزې وكړي، او خوندونه يې وڅكي، بالآخر به دوى ته معلومېږي چې د دغه مشركيت او د نعمت د كفران سخته سزا ورته څرنګه وركوله شي.

وَيَجْعَلُونَ لِمَا لَا يَعْلَمُونَ نَصِيبًا مِّمَّا رَزَقْنَاهُمْ ۗ تَاللَّهِ لَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَفْتَرُونَ ﴿٥٦﴾

او مقرروي دا (كفار) لپاره د هغو معبودانو چې په هيڅ نه پوهېږي (علم نه لري) يوه برخه له ځينو د هغو څخه چې وركړې دى مونږ دوى ته، قسم دى په الله چې خامخا پوښتېدلى به شئ تاسې هرومرو (خامخا) (په قيامت كې) له هغه څه چې يئ تاسې دروغ تړئ.

تفسير: دغه يې هغو ته وفرمايل؛ چې په خپل كښت او كار كې، په تجارت او صنعت كې، په مالدارۍ او جهاندارۍ كې ماسوا له الله څخه د نورو لپاره نذر او نياز مني (موضح القرآن)، لكه چې د عربو د مشركانو رواج او دستور وو، چې د هغه ذكر (په ۹ جزء د الأنعام سورت په (۱۶) ركوع) كې تېر شو.

له ﴿لِمَا لَا يَعْلَمُونَ﴾ څخه مراد همغه اصنام او نور دي، چې مشركينو دغه بتان له خپله جهالته او بېخبرۍ خپل معبودان يا د نفعې او ضرر مالكان ګڼل، حال دا چې د هغه هيڅ يو دليل او سند د دوى سره نه وو، بيا دغه شركاء يې هم د ډېرو (ګټو) له بُتانو ځنې تجويز كړل، چې له هر قسم علم او شعور څخه بې برخې دي.

وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ الْبَنَاتِ سُبْحَانَهُ ۙ وَلَهُم مَّا يَشْتَهُونَ ﴿٥٧﴾

او مقرروي (دا كفّار) الله ته لوڼې، پاك دى دغه (الله له ولده او له شريكه) او (مقرروي) ځان ته هغه څيز چې د دوى خوښ وي.

تفسير: يعني الله تعالى له دغه پاك او منزّه دى چې اولاد ورته ثابت كړى شي، بيا په تېره لوڼې، تعجب دى چې دغه خلق د حق تعالى په نسبت څرنګه جرأت كوي، په دغه آيت كې د «بنو خزاعه» او د «كنانه» د قبيلو رد وشو؛ چې پرښتو ته يې د الله تعالى لوڼې ويل (العياذ بالله).

وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِالْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾

او كله چې خبر وركړى شي يو تن د دغو (كفّارو) ته په (پيدا كېدو د) لور سره؛ نو وګرځي مخ د ده تك تور له غمه، حال دا چې دى ډك وي له قهر (خپلې ښځې ته چې لور دې ولې راوړه؟).

يَتَوَارٰى مِنَ الْقَوْمِ مِنْ سُوْٓءِ مَا بُشِّرَ بِهٖ ۭ اَيُمْسِكُهٗ عَلٰي هُوْنٍ اَمْ يَدُسُّهٗ فِي التُّرَابِ ۭ اَلَا سَاۗءَ مَا يَحْكُمُوْنَ ۝۵۹

پټ ګرځي له قومه (خپله) له سببه د ناخوښۍ د هغه شي څخه چې خبر ورکړی شوی دی (ده ته) په هغه سره، آيا وساتي (دی) هغه لور سره د سپکوالي، او که يې ومنډي (ژوندی) په خاوره کې؟ واورئ خبردار شئ! چې بد دی هغه چې حکم کوي دغه (کفّار چې نسبت د عيوبو دی الله ته).

تفسير: له دوی ځنې که کوم يوه ته خبر ورکړی شي چې تا کره لور شوې ده؛ نو له ډېر نفرت او غم او اندېښنې څخه يې وچولی (تندی) تريو شي، او ګرده ورځ له ډېره خفګانه په نظر په بله بڼه (شکل) راځي، او زړه يې پسخيږي چې دغه د نه ويلو غبار او مصيبت له کومه راباندې راغی؟.

﴿اَيُمْسِكُهٗ عَلٰي هُوْنٍ﴾ الآية ـ يعنې له دغه رسمي او عرفي ننګ او عار له تصوره چې کله دغه لور مې ژوندی راپاتې شي؛ نو بل څوک به مې ځوم کيږي، نو زه په هغه وخت کې چاته خپل مخ ښوولی شم؟ او چيرې به پټ ګرځم؟.

﴿اَمْ يَدُسُّهٗ فِي التُّرَابِ﴾ الآية ـ يعنې شپه او ورځ په فکر او تردد کې مصروف او تجاويز جوړوي، چې آيا زه دغه دنيوي عار قبول او دغه جينۍ پر بړدم چې ژوندون وکړي؟ يا يې په ځمکه کې خښه کړم؟ يعنې ويې وژنم، لکه چې د جاهليت په زمانه کې ډېر سخت زړي او ظالم سړي به خپلې جينکۍ وژلې، يا به يې ژوندۍ په ځمکه کې خښولې، کله چې اسلامي دين منتشر شو؛ نو دغه قبيح رسم يې له منځه ورک کړ، او په داسې ډول يې سره قلع او قمع وکړه چې وروسته له اسلامه په ګرد ملک کې د دغې بې رحمۍ يوه پېښه او مثال هم ورانډې نه شو.

د جينکو په متعلّق هغه د ظلم او تيري فيصله چې د دغو کفارو ده، له هغه ځنې زياته بده فيصله دغه ده؛ چې الله تعالی ته يې د اولاد تجويز کولو، بيا اولاد هم «اناث» چې له هغو څخه دوی پخپله کرکه او تنفر کولو، ګواکې دوی د خپلو ځانونو لپاره ښه شيان او الله تعالی ته يې ناقص شيان مخصوصول (العياذ بالله).

لِلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ مَثَلُ السَّوْءِ ۚ وَلِلّٰهِ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝۶۰

دی هغه کسانو ته چې نه راوړي ايمان په (ورځ د) آخرت مثال (صفت) بد (ناکاره)، او خاص الله لره دی مثال (صفت لوی) لوړ، او همدی دی قوي غالب (په انفاذ د احکامو) حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعنې هغه مشرکين چې د خپلو ظلمونو او ګستاخيو او سپين سترګيو په بد انجام باور نه لري؛ خراب مثال يا خراب صفت د همدوی دی، هم دوی اولاد ته اړ (مجبور) او محتاج دي، چې د درد، رنځ او د ضعيفۍ په وخت کې په ښه او په کار يې ورشي، دوی لره په کار دي چې له خپلو ځامنو څخه مدد او مرسته وغواړي، د عار يا د افلاس يا د نورو وېرو په وجې د جونو وژل د دوی دود او دستور دی.

الغرض هر ډول بد مثالونه او نقص او عيب نسبت ښايي چې د همدوی په طرف وکړی شي، د الله تعالی په طرف د دغو صفاتو انتساب چې د مخلوقاتو خاصه ده، او (معاذ الله) د ځامنو او د لوڼو د تجويز ډېر حقير او سپک مثالونه ورکول د پاک الله له عظيم او رفيع شان سره منافي دي، د الله تعالی لپاره خو هغه مثالونه او صفتونه ثابتېدی شي؛ چې له اعلی څخه اعلی او له هر لوړ او لوی شي څخه لوړ او لوی وي.

وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِظُلْمِهِم مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَابَّةٍ وَلَٰكِن يُؤَخِّرُهُمْ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى ۖ فَإِذَا جَاءَ أَجَلُهُمْ لَا يَسْتَأْخِرُونَ سَاعَةً ۖ وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ﴿٦١﴾

او که نیولي وی الله (دا) خلق په ظلم (کفر او معاصیو) د دوی سره؛ نو نه به یې وو پرې اینبی پر مخ د دې ځمکې باندې هیڅ خوځېدونکی (تلونکی)، ولیکن وروستي کوي دوی تر هغه نېټې په نامه مقررې کړی شوې پورې، نو کله چې راغله نېټه (د موت یا عذاب) د دوی؛ نه به وروسته کیږي (دوی له هغه نېټې څخه) (په قدر د) یو ساعت، او نه (ترې) ړومبي کیږي.

تفسیر: یعنې که پاک الله پر هره هره خبره په همدغې دنیا کې هر یو ونیسي، او سمدلاسه سزا ورکړي؛ نو د دغې دنیا کرده سلسله به سره وشلیږي، او په څو دقیقو (شېبو) کې به دغه دنیا پنا شي، مګر مجرمینو ته د توبې او اصلاح وار او موقع ورکوي، او تر موعوده وقته پورې یې خوشې پرېږدي، او مهلت او وار ورته ورکوي، کله چې هغه ټاکلې (مقرر کړې) نېټې ته ورسیږي؛ نو بیا هغه یوه ثانیه (رپه) نه وړاندې کیږي او نه وروسته کېدی شي.

تنبیه: ځینې مفسرین له ﴿مَّا تَرَكَ عَلَيْهَا مِن دَابَّةٍ﴾ څخه خاص ظالمه دابّه مرادوي، که دغه صحیح وي؛ نو مطلب بیخي واضح دی او هیڅ اشکال نه دی پاتې، والله أعلم.

وَيَجْعَلُونَ لِلَّهِ مَا يَكْرَهُونَ وَتَصِفُ أَلْسِنَتُهُمُ الْكَذِبَ أَنَّ لَهُمُ الْحُسْنَىٰ ۖ لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ ﴿٦٢﴾

او ثابتوي دا (کفّار) الله ته هغه څه چې بد یې ګڼي (دوی خپلو ځانونو لره لکه لوڼې یا شریکان) او بیانوي ژبې د دوی دروغ (چې) بېشکه شته دوی ته ښه حالت (په نزد د الله کې)، حقه رښتیا (ثابته خبره دا ده) چې بېشکه شته دوی ته اور، او بېشکه دغه (کفار) په منلو بیولی شي (بیا به هلته په اور کې پرېښودلی شي).

تفسیر: یعنې هغه شیان چې دوی یې بد ګڼي، او د خپلو ځانونو لپاره یې نه غوره کوي، لکه جینکۍ، یا په خپل ملکیت کې د کوم پردي شرکت، یا استهزاء یا استخفاف او نورې سپکې معاملې؛ نو هغه د الله قدّوس (جلت عظمتُه) لپاره ثابتوي.

﴿لَا جَرَمَ أَنَّ لَهُمُ النَّارَ وَأَنَّهُم مُّفْرَطُونَ﴾ یعنې سره له داسې ګستاخیو هسې باطلې آرزوګانې لرل د دې خبرې دلیل دی چې د هغوی لپاره هیڅ یوه ښېګڼه (فائده) او نیکي نشته، هو ! د دوی لپاره د دوزخ اور تیار دی، چې دوی ورته په منلو بیولی او ځغلولی شي، او کله چې هلته ورسیږي او په کې ولویږي؛ نو ګواکې بیخي هېر شوي دي، یعنې تر أبد الآباد پورې هیڅکله د مهرباني نظر به پر دوی نه کیږي.

تَاللَّهِ لَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ أُمَمٍ مِّن قَبْلِكَ فَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ أَعْمَالَهُمْ فَهُوَ وَلِيُّهُمُ الْيَوْمَ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾

قسم دی په الله په تحقیق لیږلي وو مونږ په طرف د امتونو پخوا له تا څخه (ای محمده نور رسولان)؛ نو ښایسته کړي وو دغو (امتونو) ته شیطان هغه (بد) عملونه د دوی (چې کلک پرې ولاړ وو) نو همغه (شیطان) دوست د دوی دی نن ورځ، او شته (په آخرت کې) دوی ته عذاب دردناک.

تفسیر: د مکې معظمې د کفارو د ګستاخیو او چټي (بېکاره) دعاویو د ذکر څخه وروسته محمد صلی الله علیه وسلم ته تسلي ورکوي، چې تاسې د دوی له دغو حرکاتو څخه مه خپه او مه زړه تنګي شئ! مونږ له تاسې څخه د مخه هم د مختلفو امتونو په طرف انبیاء لیږلي وو، لیکن تل همداسې پېښه واقع شوې ده، چې لعین شیطان دغو مکذبینو ته د دوی بد عمل ښه ورځرګند (وربښکاره) کړی دی، او دوی به پرله پسې پخپلو شرارتونو کې پرمختګ او ترقي کوله، او نن هغوی د الله تعالی په عذاب کې اخته او ککړ دي، او شیطان چې د دوی رفیق او ملګری وو؛ هیڅ د دوی په ښه او کار ورنغی، او نه یې په داد او فریاد ورسېدی شي، هم دغسې به ستاسې د مکذبینو انجام هم کیږي.

وَمَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ اِلَّا لِتُبَيِّنَ لَهُمُ الَّذِی اخْتَلَفُوْا فِيْهِۙ وَهُدًی وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۶۴﴾

او نه دی نازل کړی (رالیږلی) مونږ پر تا دغه کتاب (قرآن) مګر لپاره د دې چې بیان کړې ته (ای محمده!) دوی ته هغه (څیز) چې اختلاف کړی دی دغو (خلقو) په هغه کې، او (لپاره د) هدایت او رحمت لپاره (د هغه) قوم چې ایمان لري (په ټولو مؤمن به شیانو).

تفسیر: یعنې لوی قرآن یوازې د دې لپاره نازل کړی شوی دی؛ چې د هغو اساسي او ربښتیا اصولو بیان په ډېر وضاحت او تحقیق سره وکړې؛ چې خلق په کې اختلاف او جګړې کوي، (مثلا: توحید، معاد، د حلالو او حرامو احکام) او نور چې هیڅ اشکال او خفاء په کې پاتې نشي.

ګواکې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دغه لوی قرآن په وسیله د ګردو (ټولو) منازعو او جګړو سمه او صافه فیصله اورولې ده، او د الله تعالی پر بندګانو یې د الله تعالی حجّت تمام کړی دی.

﴿وَهُدًی وَّرَحْمَةً لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ﴾ یعنې فیصله او بیان خو د ګردو (ټولو) لپاره دی، لیکن د دې هدایت څخه منتفع کېدل، او د الله تعالی د رحمت سره غاړه په غاړه کېدل د همغه چا په برخه کیږي؛ چې دغه فیصله د زړه په صدق سره تسلیموي، او په طوع او رغبت سره په ټولو مؤمن به شیانو ایمان راوړي.

وَاللّٰهُ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَاؕ اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ ﴿۶۵﴾

او الله نازلې کړي (لیږلې) دي له (طرفه) د اسمانه اوبه (باران)؛ نو ژوندي (شنه) یې کړه په دې (اوبو) سره ځمکه وروسته له مرګه (وچوالي) د هغې (ځمکې)، بېشکه په دغه (زرغونتیا) کې پس له وچوالي خامخا دلیل (ښکاره د قدرت) دی لپاره (د هغه) قوم چې اوري (د الله احکام د زړه په غوږونو او په انصاف سره، بیا عبرت هم ترې اخلي)، (یا چې اوری د الله کتاب په اوریدلو د قبول سره).

تفسیر: یعنې وچه ځمکه په اسماني باران سره زرغونوي، ګواکې وچوالې د ځمکې موت، او شینتوب او خړوبتوب یې ژوندون او حیات دی.

﴿اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّقَوْمٍ يَّسْمَعُوْنَ﴾ یعنې همداسې د قرآن په وسیله جاهلان ـ عالمان، او مړه زړونه ژوندي کوي، که یې د زړه په توجّه او انصاف سره واوري.

وَاِنَّ لَكُمْ فِی الْاَنْعَامِ لَعِبْرَةًؕ نُسْقِيْكُمْ مِّمَّا فِیْ بُطُوْنِهٖ مِنْۢ بَيْنِ فَرْثٍ وَّدَمٍ لَّبَنًا خَالِصًا سَآئِغًا لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿۶۶﴾

او بېشکه چې دی تاسې ته په چارپایانو کې ډېر لوی عبرت، چې درڅښوو مونږ تاسې ته له هغه څیزونو څخه چې دي په ګېډو د هغو (لنګو څاروو کې) له منځه د خوشاییو او د وینو

شودې صافې پاکې (له رنګه او بويه د خوشايیو او وينو) آسان تېرېدونکې (له حلقه او خوش مزه) لپاره د څښونکو.

تفسير: يعنې اوښه، غوا، مېښه او نور حيوانات چې بوس، پروړ او واښه خوري، نو دغه خواړه کله چې د دوی په ګېډو کې لوېږي، د درو شيانو په طرف مستحيل کيږي، الله جل جلاله د دغو حيواناتو د اجسامو په منځ کې داسې يو مشين لګولی دی؛ چې د غـذاء د ځينو اجزاوو د تحليل کولو وروسته د فضلې (پچې او خوشايې) په شکل د باندې يې غورځوي، او له ځينو اجزاوو څخه وينه پيدا کوي او په رګونو کې يې خپروي (خوروي) چې د دوی د حيات او بقاء سبب ګرځي، له همدغې مادې څخه چې ځينې يې وينه ګرځېدلې ده، د دغو دوو ګنده وو شيانو په منځ کې يو دريم شی (چې شوده دي) هم تياروي، چې نهايت پاک، طيب، سپېځلی او خوندور شی دی.

وَمِن ثَمَرَٰتِ ٱلنَّخِيلِ وَٱلۡأَعۡنَٰبِ تَتَّخِذُونَ مِنۡهُ سَكَرٗا وَرِزۡقًا حَسَنًاۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَأٓيَةٗ لِّقَوۡمٖ يَعۡقِلُونَ ﴿٦٧﴾

او له مېوو د خرماګانو او (له مېوو د) د تاکو (کورو ـ انګورو) څخه (هم داسې درڅښوو مونږ پر تاسې)، چې جوړوئ تاسې له دغو مېوو څخه نشه کوونکې (بد) او رزق (روزي) ښه، بېشکه په دغو (انواعو د مېوو او مشتقاتو) کې (يې) خامخا دليل د الله تعالی د يووالي دی لپاره د (هغه) قوم چې عقل چلوي، او فکر او غور په کې کوي.

تفسير: يعنې له دغو مېوو څخه نشه يې باسئ، او د خوړلو او څښلو نور ښه او عمده شيان ترې جوړوئ لکه شربت، نبيذ، سرکه او وچه خرما او مويز او نور ترې حاصلوئ.

تنبيه: دغه آيت مکي دی، د شرابو څښل په مکه معظمه کې لا نه وو حرام شوي، او شراب څښونکي به هغه بلا تکلفه څښل، د شرابو څښل وروسته له هجرته حرام شو، بيا هيڅ يو مسلمان له سره لاس نه دی وروړی، خو بيا هم په همدغه مکي آيت کې يې هم د ﴿سَكَرٗا﴾ څخه وروسته د ﴿وَرِزۡقًا حَسَنًا﴾ فرمايلو سره تنبيه فرمايلې ده، چې وروسته له دې نه شراب حرام کېدونکي دي، ځکه چې پر شرابو د «رزق حسن» اطلاق نه دی موزون، او بل دلته د ﴿يَعۡقِلُونَ﴾ لفظ چې د عقل څخه مشتق دی د «سکر» له تذکرې سره خاص مناسبت لري، کله چې نشه عقل زائل کوي؛ نو ځکه يې اشاره وفرمايله چې د آياتونو پوهېدل د عقلاوو کار دی، او د نشه څښوونکو او مستانو کار نه دی.

وَأَوۡحَىٰ رَبُّكَ إِلَى ٱلنَّحۡلِ أَنِ ٱتَّخِذِي مِنَ ٱلۡجِبَالِ بُيُوتٗا وَمِنَ ٱلشَّجَرِ وَمِمَّا يَعۡرِشُونَ ﴿٦٨﴾

او په زړه کې واچوله رب ستا مچيو د شاتو ته (دا خبره) چې ونيسئ (او جوړوئ) تاسې په غرونو کې کورونه او له ونو څخه او له هغه څخه چې خلق يې لوړ جوړوي.

تفسير: يعنې د انګورو د پورته کولو لپاره هغه چپلې او اچې (څپرونه) چې تاسې يې جوړوئ يا هغه عمارتونه چې خلق يې تياروي، د شاتو مچې په زړه کې اچولو او حکم ورکولو څخه دغه مطلب دی؛ چې د هغه فطرت داسې جوړ شوی دی، چې سره د ادنی حيوانتوبه په نهايت کاريګری، ډېرې چالاکی، ښه شعور، اعلی ادراک او نرې صنعت خپلې شکرګنې (ګبينونه) د غرو او ونو په سوريو او چاودونو او په عمارتونو او نورو کې تياروي، او نورې ټولې مچې د يوې لويې مچې تر حکم لاندې په ډېر ښه اطاعت او انقياد سره کار کوي.

د دوی مشر ته «يعسوب» وايي، چې د ده په متابعت د مچيو فوج هر لوري ته حرکت کوي، کله چې دوی کومه ځاله (شکرګنه) جوړوي؛ نو د دغې ځالې ټولې خونې د «متساوي الأضلاع مسدّس» په شکل وي، بې له مسطرو او بې له پرکارو او نورو هندسي اسبابو په دومره صحت او انضباط سره داسې سم او برابر ـ منظم مرتب او په همغه يوه شکل د دغو ګردو کورونو جوړول داسې شی دی؛ چې انسان ورته هک پک او حيران پاتې کيږي.

حکماء وايي: که بې له مسدسه کوم بل شکل يې غوره کړی وي؛ نو خامخا به په منځ کې څه ځای فضول او بېکاره پاتې وي، فطرت دې ته د داسې يوه شکل په لورې لارښوونه کړې ده؛ چې په هغه کې هيڅ يوه فرجه او تشوالی هم خوشې او بېکاره نه وي پاتې.

﴿ثُمَّ كُلِي مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ۝﴾

بيا نو خورئ تاسې (ای مچيو !) له هر قسمه مېوو څخه نو ځئ (الوځئ) په لاره د رب خپل په دغه حال کې چې آسانه ده (صافه او خلاصه درښکاري)، راوځي له ګېډو د دوی د څښلو (شی، شات) چې مختلف دي رنګونه د دې، په دغو (شاتو) کې شفاء ده لپاره د خلقو، بېشکه په دغو (مچيو او شاتو کې) خامخا ډېر لوی دليل دی (پر قدرت او حکمت د الله) لپاره د هغه قوم چې فکر کوي.

تفسير: ﴿كُلِي﴾ او ﴿فَاسْلُكِي﴾ ګرد تکويني اوامر دي، يعنې فطرتاً يې هغه ته هدايت ورکړی دی چې خپل خواهش او استعداد او مزاج سره مناسب له هر قسمه مېوو او ګلانو او نورو شيانو څخه خپل خواړه او غـذا حاصله او غونډه کړي، لکه چې دغه مچۍ له خپلو ځالو څخه راوځي، او له هر راز ګلانو او مېوو خپله غـذا په ځيښلو سره حاصلوي، چې له هغه څخه شات او موم او نور حاصلېږي.

﴿فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا﴾ يعنې د غـذاء حاصلولو، او د خوړلو او څښلو څخه وروسته د بېرته راتللو لارې صافې او خلاصې در پرتې دي، او هيڅ يو مزاحمت او ممانعت ستاسې په لاره کې نشته، لکه چې ليدلې شوي دي چې مچۍ خپلې د غـذاء لټولو پسې بعضې اوقات ډېرو لرو ځايونو ته ځي، او بيا بلا تکلّفه خپلې شکرګنې (ځالې) ته برابر بېرته راځي، او لرې شانې هم ترې لار نه ورکيږي، او نه ترې هيريږي.

ځينې د ﴿فَاسْلُكِي سُبُلَ رَبِّكِ ذُلُلًا﴾ مطلب داسې اخيستی دی، چې الله تعالی هغه فطري لارې چې ستا د عمل او تصرّف لپاره مقررې کړې دي؛ پر هغو مطيع او منقاد شه ! او سم برابر پرې تل درومه ! مثلاً د ګلانو او مېوو څخه خپله غـذا وڅکه او وځيښه ! او پخپلې فطري قواوو او تصرفاتو سره شات او نور ترې جوړوه !.

﴿يَخْرُجُ مِن بُطُونِهَا شَرَابٌ مُّخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ﴾ يعنې د مختلفو رنګونو شات ترې وځي: سپين، سره او ژېړ، وايي چې د رنګونو اختلاف پر موسم ـ غـذاء ـ او د مچيو په عمر او نورو پورې اړه لري، او د دغو مخالفتونو لامله دغه اختلاف په کې څرګنديږي، والله أعلم.

﴿فِيهِ شِفَاءٌ لِّلنَّاسِ﴾ يعنې په ډېرو ناجوړيو کې له يواځې خالصو شاتو څخه يا له بلې کومې دواء سره د ګډېدلو په اثر کله چې مريضانو ته ورکړ شي؛ باذن الله د رنځورانو د شفاء وسيله ګرځي، په حديث کې راغلي دي چې يو سړی د نس کېناستلو (دستونو) لامله ډېر سخت په تکليف وو، د ده ورور ته ځمونږ پاک رسول الله مبارک صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې: پرې شات وڅښولی شي، کله چې شات پرې وڅښول شو؛ نو د هغه په اسهال کې لا تزيید واقع شو، نو هغه سړی بيا د رسول الله مبارک په حضور کې حاضر شو، او هغه واقعه يې عرض کړه چې يا رسول الله صلی الله عليه وسلم ! ځما د ورور نس ناسته لا پسې زياته شوه، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: «صدق الله وكذب بطن أخيك» «الله رښتيا فرمايلي دي، او ستا د ورور ګېډه دروغجنه ده، بيا يې پرې وڅښوه»، بيا ورڅښولو څخه بيا هغه کيفيت مداومت وکړ، نو بيا هم پاک رسول الله صلی الله عليه وسلم هغه خپله اوله وينا تکرار کړه، بالآخر د دريم ځلي شات ورڅښولو څخه هغه اسهال بند شو، او د هغه رنځور طبيعت درست شو.

اطباوو له خپلو اصولو سره سم ویلي دي، چې ځینې اوقات په ګېډه کې «کیموس» فاسدیږي، چې د ګېډې هر راز (قسم) رسېدلې غـذاء او خواړه او دواء فاسدوي، نو ځکه اسهال (د نس ناسته) پیل (شروع) کوي، نو د هغه علاج همدغه دی؛ چې مسهلات ورکړ شي، څو هغه فاسد «کیموس» ووځي، د شات په مسهلتوب کې هیڅ شک نشته، ګواکې د رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم مشوره د همدغه طبي اصول په اساس وه.

د مأمون الرشید په زمانه کې کله چې «شمامة عبسي» ته هم داسې یو مرض لاحق شو، نو د دغې زمانې شاهي طبیب «یزید بن حناء» په مسهل د هغه علاج وکړ، او همدغه وجه یې ورڅرګنده (ورښکاره) کړه، د نن پرون طبیبان هم د «استطلاق البطن» د علاج لپاره د شات استعمال بېحده مفید ښیي.

وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ ثُمَّ يَتَوَفَّاكُمْ وَمِنْكُمْ مَنْ يُرَدُّ إِلَىٰ أَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴿٧٠﴾

او الله پیدا کړي یئ تاسې (له عدمه) بیا به وژني تاسې (بیا به وفات کړي تاسې په اجل خپل سره) او ځینې له تاسې هغه څوک دي چې رد کولی شي هغه ډېر خوار ژوندون ته لپاره د دې چې ونه پوهیږي (دغه زوړ) پس له علمه چې یې درلود (لرلو) په ځلمیتوب کې په هیڅ شي (لکه وړوکی)، بېشکه چې الله ښه عالم دی (پر هر شي) ښه قادر دی.

وَاللَّهُ فَضَّلَ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ فِي الرِّزْقِ فَمَا الَّذِينَ فُضِّلُوا بِرَادِّي رِزْقِهِمْ عَلَىٰ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَهُمْ فِيهِ سَوَاءٌ أَفَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَجْحَدُونَ ﴿٧١﴾

او الله فضل ورکړی دی ځینې ستاسې ته پر ځینو (نورو) په رزق (روزی په غنا، فقر، مالکیت او مملوکیت) کې، نو نه دي هغه کسان چې فضل زیات ورکړی شوی دی دوی ته رد کوونکي (ورکوونکي) د رزق (روزی، مال) خپل هغه چا ته چې یې مالکان شوي دي ښې لاسونه د دوی (یعنې له خپلو ځانونو سره یې شریکوي)، آیا نو دا مالکان او مملوکان په دې (اموالو) کې سره برابر دي؟ (بلکه نه دي سره برابر)، آیا نو په نعمت د الله باندې انکار کوي دغه (چې الله ته شریکان ثابتوي).

تفسیر: یعنې د الله تعالی راکړې روزي او بخښنه د ټولو لپاره یو شان او یو برابر نه ده، د استعدادو او احوالو د تفاوت په لحاظ پاک الله تعالی پخپل بالغه حکمت ځینو ته پر ځینو نورو فضیلت ورکړی دی، ځینې یې داسې مالداره او بااقتداره ګرځولي دي؛ چې د هغوی تر لاسو لاندې ډېر مریان او نوکران او چاکران وي، چې هغوی ته د همده په ذریعه روزي وررسیږي، فرض یې کړئ! که بادار خپل مریي آزاد کړي، او پخپل دولت او نورو کې ورته پوره او برابره برخه ورکړي؛ نو بېشکه دلته د دوی دواړو په منځ کې مساوات قائمیږي، مګر په دغه وخت کې هغه مریي مریي نه دی پاتې، په هر حال د مریتوب کیفیت او مساوات له سره پخپلو منځو کې سره نشي جمع کېدی، لکه چې د دوو همجنسو او متحدالنوعو انسانانو په منځو کې په مالکیت او مملوکیت کې سره شرکت او مساوات نشي جمع کېدی؛ نو بیا د حسرت او حیرت ځای دی، چې د خالق او مخلوق په منځ کې په معبودیت او نورو کې څرنګه برابري او مساوات کولی شي؟ داسې شیان د حقیقي مالک شریک او سهیم ټاکلي کیږي، چې پخپله مشرکین هم هغه د الله تعالی مخلوق او مملوک ګڼي، او پرې داسې اقرار کوي: «إلا شریکا هو لک، تملکه وما ملک» آیا د حقیقي منعم د نعمتونو شکریه همدغه ده چې د هغو خبرو څخه چې د هغو په منلو کې ستاسې وچولی (تندی) تریو کیږي، او غړي مو وهلی کیږي، او ډېر پرې خپه کېږئ، له هغه څخه زیات قبیح او شنیع صورت هغه لپاره تجویز وکړی شي، همغسې چې په روزی او نورو شیانو کې الله تعالی ځینو ته پر ځینو نورو فضیلت ورکړی دی، او ګرد یې سره په یوه درجه کې نه دي اېښي، که

په علم او عرفان او د نبوت په كمالاتو كې هم كوم لوى ذات ته پر نورو فوقيت وركړي؛ نو د الله تعالى د دغه نعمت څخه انكار پر ته (علاوه) له ضده او عناده بله وجه نه لري.

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ اَزْوَاجِكُمْ بَنِيْنَ وَحَفَدَةً وَّرَزَقَكُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ ۭ اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ وَبِنِعْمَتِ اللّٰهِ هُمْ يَكْفُرُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ شَيْـًٔا وَّلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿۷۳﴾

او الله پيدا كړي تاسې ته له جنسه ستاسې ښځې (چې زړه مو ورسره آرام شي) او پيدا كړي يې دي تاسې ته له ښځو ستاسې ځامن او لمسي (چې ستاسې د نوعې د بقاء ذرائع دي) او روزي رزق يې دركړى دى تاسې ته له طيباتو پاكيزه وو (خوندورو شيانو نه چې ستاسې د شخصي بقاء وسائل دي)، آيا نو (دغه كفّار) پر باطلو (معبودانو) ايمان راوړي، او په نعمت د الله (چې اسلام دى) دوى كافران كيږي. او عبادت كوي دغه (كفّار) بې له الله د هغه (څيز) چې نه لري هيڅ واک لپاره د دوى د رزق (روزي وركولو) له اسمانونو (په وررولو سره) او له ځمكې (په زرغونولو سره) د هيڅ څيز او نه طاقت لري (دغه باطل معبودان د هيڅ شي).

تفسير: يعني له همدغې انساني نوعې څخه ستاسې ښځې يې پيدا كړې، څو ستاسې په منځ كې الفت او مؤانست قائم وي، او د تخليق غايه او غرض تكميل شي، ﴿وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْٓا اِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً﴾ (۲۱ جزء د الرّوم سورت (۲۱) آيت (۳) ركوع).

﴿اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ﴾ يعني د بُتانو احسان منئ چې له ناروغۍ څخه مو په زعم ستاسې روغ كړي، يا ځامن دركړي، يا روزي در ورسوي، چې دغه ګرد سره دروغ او هغه ذات چې په رښتيا سره د دغو شيانو دركوونكى دى؛ د هغه شكر نه اداء كوئ، كذا في الموضح.

﴿وَيَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ﴾ يعني نه له اسمانه د باران وررولو اختيار لري، او نه له ځمكې څخه د غلې او دانې د زرغونولو قدرت د دوى په واک كې شته، نو بيا په معبوديت كې د مطلق قادر او برحق قاهر شريكان څرنګه كېدى شي؟.

فَلَا تَضْرِبُوْا لِلّٰهِ الْاَمْثَالَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۷۴﴾

نو مه بيانوئ تاسې الله سره مثالونه (شريكان په عبادت كې)؛ بېشكه الله ته معلوم دى (بطلان د قول ستاسې) او تاسې نه پوهېږئ (كه نه داسې به مو نه كوله).

تفسير: مشركانو به ويل چې حقيقي مالک خو الله تعالى دى، دغه كسان د الله تعالى په دربار كې مختار دي، او څمونږ كارونه هم دغو پورې اړه لري، او هغه الله پورې مونږ نشو رسېدى، نو دغه مثال بيخي غلط دى؛ چې انسانان دې د احديت له درباره سره بالكل څه تعلق او مناسبت ونه لري، الله تعالى هر شى پخپله كوي، اعم له دې چې بالواسطه وي يا بلاواسطه، او هيڅ يو كار يې هيچا ته داسې نه دى سپارلى، لكه چې دنيوي سلاطين خپلو ماتحتو حكامو ته اختيارات ور تفويض كوي، چې تفويض يې په اراده او اختيار سره وي، ليكن د تفويض څخه وروسته هغوى د هغو اختياراتو په استعمال كې آزاد او مختار دي، د كوم شورى، اعيان، وزير، معين، نائب الحكومه، مجلس مشوره، قاضي او حاكم د فيصلې په وخت كې نه باچا او نه وزراء او نه بل څوک د هغې واقعې له جزياتو او فيصلې څخه پوره خبردار وي، نه په هغه وخت كې په جزئي ډول سره د باچا مشيت او ارادې ته د هغې فيصلې په صدور كې څه دخل شته، دغه صورت د الله تعالى په دربار كې له سره نشته، بلكه هر يو لوى او وړوكى كار او له ادنى څنې ادنى جزئي

شی که د اسبابو په واسطه سره وي، که بلاواسطه د ده د محیط علم او مشیت او ارادې سره سم واقع کیږي؛ نو بناء پر دې پر مونږ او نورو هر مسلمان او انسان لازم دي، چې د هر کُلّي او جزئي خالق، فاعل او حقیقي مؤثر همغه پاک الله تعالی وبولي، او یواځې بې له مله او شریکه همغه الله واحد جل وعلا خپل معبود او مستعان وپیژني، او پر همدغه اعتقاد ټینګ او کلک ولاړ وي.

تنبیه: له ابن عبّاس رضي الله تعالی عنهما او نورو اسلافو څخه د ﴿فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ﴾ دغه مطلب منقول دی: «تاسې هیڅ شی د پاک الله سره مماثل مه بولئ !».

ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا عَبْدًا مَّمْلُوكًا لَّا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَمَن رَّزَقْنَاهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَجَهْرًا ۖ هَلْ يَسْتَوُونَ ۚ الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾

بیانوي الله یو مثال چې مریي وي مملوك (نه مکاتب او مأذون) چې نه قادریږي په هیڅ شي (له نفعې او ضرره)، او بل هغه څوك وي چې رزق روزي ورکړې وي مونږ ده ته له درباره خپله رزق روزي ښه (ډېر مال بې له شرکته)، نو دغه سړی نفقه کوي له هغه ماله په پټه او ښکاره، آیا برابریږي سره دوی (نه برابریږي)، ټوله ثناء صفت الله لره دی (چې لوی څښتن «مالك» د ټولو نعماوو دی)، بلکه زیاتره یعنې ګرد د دوی سره نه پوهیږي (چې نسبت د نعمتونو کوي نورو ته).

تفسیر: یو سړی چې هغه خپلواك (خود مختار) او آزاد نه وي، او د بل مریي او مملوك وي، او هیڅ ډول قدرت او اختیار نه لري، او په هر تصرّف او کار کې د مالك اجازې او اشارې ته اړ او محتاج وي، او بلا اجازه د هغه ګرد تصرّفات غیر معتبر وي، بل خپلواك آزاد با اختیاره سړی دی، چې ورته الله پخپل فضل او رحمت ډېره روزي رزق او مقدرت وربخښلی دی، چې له هغه څخه شپه او ورځ په پټه او ښکاره (په هر ډول یې چې زړه غواړي) په خلاص لاس او په ډېر اخلاص یې صرفوي، او هیڅوك د هغه لاس نشي نیولی، آیا دغه دواړه سړي سره برابر کېدی شي؟ همداسې وپوهېږئ چې الله تعالی د هر څیز حقیقي مالك دی، او ټول تعریفونه او ښېګڼې (فائدې) د ده په خزانه کې دي، هر چا ته هر څه چې اراده وفرمایي؛ ورکوي یې، او هیڅوك یې مزاحمت کوونکی نه دی، په ذره ذره باندې هم کلي اختیار او کامله قبضه لري، دغه به څومره د ظلم خبره وي چې تاسې له هغه الله جل جلاله سره د ډبرې (ګټې) یا د خټو یا د نورو یو داسې بُت برابروئ؛ چې هغه د هیڅ یو څیز مالك نه دی، بلکه پخپله د بل چا مال دی، کله چې مجازي مالك او مجازي مملوك سره نشي برابرېدی؛ نو بیا حقیقي مملوك به څرنګه د حقیقي مالك شریك کېدی شي؟.

وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا رَّجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلَىٰ شَيْءٍ وَهُوَ كَلٌّ عَلَىٰ مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّههُّ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ ۖ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَن يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ ۙ وَهُوَ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٦﴾

او بیانوي الله یو مثال چې دوه سړي وي چې یو له دوی نه ګونګ (چاړا) وي (چې نه څه اوري او نه څه وایي) نه قادریږي په هیڅ څیز حال دا چې دغه ګونګ بار (پېټی) وي پر مولا (بادار) خپل، هر چېرته چې ولیږي (بادار) دغه (مریي)؛ نه راوړي نه راځي په خیر سره (بلکه شر ورته راوړي)، آیا برابریږي دغه (ګونګ بې خبره)، او هغه څوك چې امر کوي (خلقو ته) په عدل (انصاف؟ بلکه له سره نه دي برابر) حال دا چې دی (پخپله هم) پر لاره سمه (روان وي چې ژر رسېدونکې ده مقصود ته).

تفسير: څوک چې ګونګی وي؛ نو په لازمي ډول سره کوڼ به هم وي، ګواکې دی به نه پخپله خبرې کولی شي، او نه له نورو څخه څه شی اورېدی شي (او هيڅ قوّت او قدرت نه لري په هيڅ شي)، ځکه چې نه حواس لري، نه عقل او شل او شوټ هم وي، چې هيچېرې تلی راتلی هم نشي، د خپل مالک هيڅ يو کار نشي کولی، هر چېرې چې يې ولېږي، يا يې متوجّه کړي؛ هيڅ قسم ښېګڼه (نفع) او فلاح نشي وررسولی (او کار يې تر سر نه رسوي)، او خپل بادار «سردار» د هغه په مقصد او کار نه بريالی کوي)، نو آيا سره برابرېږي دغه ګونګ او بېخبره او هغه څوک چې امر کوي خلقو ته په عدل او انصاف سره؟ يعنې پخپله هم پر سمه لاره روان دی، او هم نورو ته هم د اعتدال او انصاف سمه برابره لاره ورښيي او روانوي يې، کله چې دغه دواړه کسان سره نه دي برابر؛ نو يو له خپله ځانه جوړ کړي بُت ته العياذ بالله د معبود درجه ولې ورکوله کيږي؟ يا يو ړوند او کوڼ مشرک چې د الله تعالی پيدا کړې روزی څخه خوري، او ديوې کوډې په اندازه کار هم نه کوي، له هغه قانت مؤمن سره څرنګه برابر کېدی شي چې دی پخپله هم په سمه صافه لاره روان دی، او نور خلق هم له خپله ځانه سره يو ځای بيايي؟.

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ وَمَآ اَمْرُ السَّاعَةِ اِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۷۷﴾

او خاص الله لره دی (علم په) پټو د اسمانونو او د ځمکې، او نه دی امر (قيام) د قيامت (په سرعت او سهولت کې) مګر په مثل د پټولو يا خلاصولو د سترګو بلکه دا له هغه څخه هم ډېر نژدې دی، بېشکه الله پر هر شي ښه قادر دی.

تفسير: يعنې ګرد مخلوق سره يو شان نه دي، د يوه سړي حال د بل سړي له حاله بې انتهاء اختلاف لري، ګرد شيان پر يوه مستوي سطح نه دي درولي شوي، د دغو ټولو شيانو اسرار او د هر يوه پټ استعدادات او مخفي حالات الله تعالی سره دي، لکه چې الله سم له خپل محيط علم سره په قيامت کې له هر يوه سره بېله معامله کوي، او پر مختلفو احوالو به مختلفې نتيجې مرتب فرمايي.

يعنې تاسې قيامت مستبعد مه ګڼئ، پاک الله تعالی ته هيڅ يو څيز مشکل نه دی، کله چې د ګردو خلقو د بيا ژوندي کولو اراده وفرمايي؛ نو د سترګو د يوه رپ په اندازه به هم څه ځنډ (درنګ) نه لګيږي، همدا چې اراده يې وفرمايي، په يوه طرفة العين کې به ګرد جهان بيا موجوديږي.

تنبيه: د ﴿كَلَمْحِ الْبَصَرِ اَوْ هُوَ اَقْرَبُ﴾ مطلب دا دی چې د عامو خلقو له محسوساتو سره موافق د هغه د سرعت تعبير د سترګو په رپولو سره وکړی شو، ليکن په واقع کې له دې نه به هم ډېر لږ مدّت کې قيامت قائميږي، ځکه چې «لمح البصر» په هر حال يو زماني شی دی، او د الله تعالی پر اراده د مراد ترتيب هرومرو (خامخا) فوري او آني دی.

وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِّنْۢ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْــــًٔا ۙ وَّجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْـِٕدَةَ ۙ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۷۸﴾

او الله راوويستئ تاسې له نسونو (ګېډو) د ميندو خپلو حال دا چې نه پوهېدئ تاسې په هيڅ شي (څيز له خيره او شره) او پيدا کړي (درکړي) يې دي تاسې ته غوږونه او سترګې او زړونه (او نور حواس او نور اسباب) لپاره د دې چې شکر وباسئ (په دغو نعمتونو).

تفسير: يعنې د پيدايښت په وخت کې تاسې په هيڅ شي نه وئ خبر او نه په څه پوهېدئ، پاک الله تاسې ته د علم ذرائع او پوه لرونکی زړه درکړ، چې هر يو د دغو بالذات پخپله هم لوی نعمت دی، او د لکونو نورو نعمتونو د

متمتّع كېدلو وسائل هم دي، كه سترګې، غوږونه، عقل او نور حواس اعضاء او جوارح نه وي؛ نو د ګردو ترقياتو ورونه به بندېدل، هومره چې انسان وړوكى لويېږي؛ هغومره د هغه علمي او عملي قوّتونه هم بالتدريج لويېږي او پسې زياتيږي.

اَلَمْ يَرَوْا اِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرٰتٍ فِيْ جَوِّ السَّمَآءِ ۭ مَا يُمْسِكُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۝۷۹

آيا نه ګوري دغه (انسانان) په طرف د الوتونكو (مرغانو) چې مسخّر كړى شوي دي په جوّ (هوا) د اسمان كې، نه ساتي دوى لره (په دې هوا كې له پرېوتلو څخه) مګر الله، بېشكه په دغه (تسخير د مرغانو) كې خامخا دلائل د توحيد دي لپاره د (هغه) قوم چې ايمان راوړي (ځكه چې سترګې د عبرت همدوى لري).

تفسير: يعنې لكه چې بني آدم ته يې د هغه مناسب قوّتونه ورعنايت فرمايلي دي؛ مرغانو او طيورو ته يې هم د دوى له حالاتو سره مناسب فطري قوتونه په وديعت سره وركړي دي، هر يو الوتونكى پخپله الوتنه كې د الله تعالى تكويني احكامو ته مطيع او منقاد دى، هغوى ته په هيڅ يوې مدرسې كې د الوتلو لوست او ښوونه نه ده وركړى شوي، الله تعالى د دغو مرغانو او طيورو وزرونه، لكۍ، منګلې، مښوكې او نور اعضاء او جوراح او حواس داسې جوړ كړي دي، چې په نهايت آسانۍ سره په فضاء او د هوا په منځ كې الوتلى شي، او داسې نه كيږي چې د هغه ثقيل جسم د لطيفې هوا فضاء څيري كړي يا يې وشكوي، او بې اختياره لاندې ولويږي، يا د ځمكې عظيم الشان جذب او راښكودل هغوى خپل ځان ته راكش كړي، او د هغو د الوتلو مخه ونيسي، د الله تعالى څخه ماسوا بل څوك دي چې دغه طيور بې تكلفه په معمولي ډول سره په فضاء كې ساتي، او د هوا په جو كې يې چپ چاپېر الوځوي؟.

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّنْۢ بُيُوْتِكُمْ سَكَنًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنْ جُلُوْدِ الْاَنْعَامِ بُيُوْتًا تَسْتَخِفُّوْنَهَا يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ اِقَامَتِكُمْ ۙ وَمِنْ اَصْوَافِهَا وَاَوْبَارِهَا وَاَشْعَارِهَآ اَثَاثًا وَّمَتَاعًا اِلٰى حِيْنٍ ۝۸۰

او الله پيدا كړي دي تاسې ته له كوټو (كورونو) ستاسې ځاى د هستوګنې (يعنې د خښتې تيرې «ګچې» لرګي او نورو شيانو عمده عمارتونه)، او (الله) پيدا كړي تاسې ته له پوستكو د چارپايانو (څاروو) كورونه چې سپك مومئ تاسې هغه په ورځ د كوچ او سفر ستاسې او په ورځ د اړوولو ستاسې، او (الله پيدا كړي دي تاسو ته) له وړيو د دغو (چارپايانو ګډو) او له وړيو د دغو چارپايانو اوښانو) او د ويښتو (وژغنو) د دغو (چارپايانو بيزو) اسبابونه (د اغوستلو او غوړولو او استعمالولو) او د نفعې اخيستلو تر حين (تر وقته د مړ كېدو ستاسې يا د حيواناتو، يا تر قيامته) پورې.

تفسير: يعنې كله چې د خښتو او د تيږو (ګچو) عمارتونه بل چېرې نشو منتقل كېدى؛ نو د څرمنې او د وړيو او د نورو كېږدۍ او تمبوګان او خيمې جوړول مو وروښودل، چې په سهولت او آسانۍ سره منتقل كېدى شي، په سفر او حضر كې هر چېرې چې مو زړه وغواړي؛ هلته يې ودروئ، او هر وخت چې مو زړه وغواړي؛ راټول يې كړئ، او يوې خواته يې كېږدئ، ځينو د ﴿يَوْمَ ظَعْنِكُمْ وَيَوْمَ اِقَامَتِكُمْ﴾ مطلب داسې اخيستى دى چې د تګ په وخت كې او د پورته كولو او ښكته كولو او درولو په وخت كې سپك وي، او هيڅ تكليف او رېړ (زحمت) نه درپېښوي.

وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمْ مِّمَّا خَلَقَ ظِلٰلًا وَّجَعَلَ لَكُمْ مِّنَ الْجِبَالِ اَكْنَانًا وَّجَعَلَ لَكُمْ سَرَابِيْلَ تَقِيْكُمُ الْحَرَّ وَسَرَابِيْلَ تَقِيْكُمْ بَاْسَكُمْ كَذٰلِكَ يُتِمُّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تُسْلِمُوْنَ ﴿۸۱﴾

او الله پيدا کړي دي تاسې ته له هغو څيزونو څخه چې پيدا کړي يې دي سيوري (مثلا د ورېځو، ونو، عمارتونو، غرونو او نورو سيوري له قانونه سره سم پر ځمکه لويږي، چې په هغه کې د حرارت په اوقاتو کې خلق آرام او هوسايي کوي) او (الله) پيدا کړي دي تاسې ته له غرونو څخه ځايونه د پټېدلو (ګاړې او سمځې چې هلته مو سرونه ننباسئ، او له بارانه، له لمره، يا له دښمنانو او نورو څخه مو ځانونه ساتلی شئ)، او (الله پيدا کړي دي تاسې ته) قميصونه (د پنبې وړيو کتانو او نورو) چې ساتي تاسې له ګرمۍ نه، او (الله پيدا کړي دي تاسې ته) قميصونه (د اوسپنې او ځغرې) چې ساتي مو (له ضرره) د جنګه ستاسې، همداسې (چې تېر نعمتونه يې تمام کړي دي؛ پوره کوي نعمت (احسان خپل) پر تاسې لپاره د دې چې تاسې اسلام راوړئ (د الله حکم ومنئ).

فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۸۲﴾

نو که شا وګرځوله دوی (له اسلامه نو تا ته هيڅ ضرر نشته) پس بېشکه چې خبره همدا ده چې پر تا (ای محمده !) رسوونه ده ښکاره.

تفسير: يعنې که دوی سره د دومره احساناتو د اورېدلو بيا هم د الله تعالی په مقابل کې خپل سرونه ښکته نه کړي، نو تاسې هيڅ غم او انديښنه مه کوئ ! تاسې خپله فريضه او سپارلې شوې وظيفه اداء فرمايلې ده، او په ډېر صراحت او ښه وضاحت سره مو ګردې ضروري خبرې هغوی ته اورولې دي، وروسته له دې نه د هغوی معامله پاک الله ته وسپارئ !.

يَعْرِفُوْنَ نِعْمَتَ اللّٰهِ ثُمَّ يُنْكِرُوْنَهَا وَاَكْثَرُهُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۸۳﴾ ع

پېژني دغه (کفار علماً) نعمتونه د الله چې اقرار پرې کوي بيا انکار کوي له هغه څخه (عملاً چې د غيرُ الله عبادت کوي) او زيات د دغو (منکرانو) څخه کافران دي.

تفسير: يعنې بېشکه ځيني بندګان شکرګذار هم دي ﴿وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ﴾ (۲۲ جزء د سبأ سورت (۱۳) آيت (۲) رکوع)، ليکن د اکثرو دغه حال دی چې سره د الله تعالی د انعاماتو او احساناتو د ليدلو او پوهېدلو خو بيا هم د الله تعالی شُکرګذاري او د اطاعت له اظهاره غافلان کاهلان او ذاهلان دي، او شکر يې نه اداء کوي، او احسانات يې هېروي، ګواکې له زړه پرې پوهيږي او عملاً ترې انکار کوي.

وَيَوْمَ نَبْعَثُ مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُوْنَ ﴿۸۴﴾

او (وويروه ای محمده ! دغه کفّار له هغې) ورځې چې راپورته به کړو مونږ هر امّت څخه يو شاهد (يعنې په ايمان او کفر د دوی) بيا به نه ورکولی کيږي اذن (حکم د معذرت يا دنيا ته د رُجوع) هغو کسانو ته چې کافران شوي دي، او نه به له دوی نه طلب د استرضاء کولی شي (له الله نه په منلو د توبې سره).

تفسير: دلته د کفر او ناشکرۍ انجام راښيي، يعنې په ياد يې ولرئ چې هغه ورځ هم راتلونکې ده چې ګرد (ټول) پخواني او وروستني امتونه به د أحکم الحاکمين په وروستني عدالت کې سره ودريږي، او د هر امت نبي به د ګواه په

ډول درولي كيږي، څو د خپل امت د نېك او بد او مطيع او عاصي په نسبت شهادت وركړي چې كوم يوه څه معامله كړې ده؟ او د الله تعالى د پيغام حق څرنګه اداء او له انبياوو سره يې څرنګه سلوك كړي دي؟ په دغه وخت كې به دغو منكرانو ته له سره د خبرې اجازه نه وي، او نه به خپلې شونډې پرانستلی شي، يا اوس وروسته له وخته په توبه ايستلو سره څرنګه خلاصېدی شي؟ حال دا چې دوی به پر خپل مجرمتوب او د خپلو د هيڅ قسم ننواتو او معذرتونو نه قبلېدلو باندې پوره خبر او د هغه انكشاف به دوی ته شوی وي، او دوی به په دغه وخت په دې باندې هم پوهيږي چې دا ځای «دار الجزاء» دی، او «دار العمل» نه دی، چې اوس په پښېمانۍ او توبه ايستلو سره خطاوې وبخښلی شي.

﴿وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ ظَلَمُوا الْعَذَابَ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمْ وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ۝٨٥﴾

او كله چې ووينې هغه كسان چې ظلم (شرك) يې كړي دی (پر نفسونو خپلو) عذاب؛ نو سپك به نه كړی شي له دوی نه (عذاب د دوزخ) او نه به دوی ته مهلت وركړی شي (لپاره د اعتذار).

**تفسير:** يعني نه به د عذاب په سختۍ كې څه تقليل واقع كيږي، او نه به په منځ كې څه وار او مهلت وركړ شي، سمدلاسه به په بل عذاب كې اخته كيږي، ځينو د ﴿وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ﴾ څخه دغه مراد كړی دی، چې د جهنّم د ليدلو څخه وروسته د يوې دقيقې (منټ) لپاره هم دوی ته مهلت او فرصت نه وركول كيږي، او جهنّم على الفور ګرد مجرمان خپل طرف ته كش كوي.

﴿وَإِذَا رَأَى الَّذِينَ أَشْرَكُوا شُرَكَاءَهُمْ قَالُوا رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ شُرَكَاؤُنَا الَّذِينَ كُنَّا نَدْعُوا مِن دُونِكَ ۖ فَأَلْقَوْا إِلَيْهِمُ الْقَوْلَ إِنَّكُمْ لَكَاذِبُونَ ۝٨٦﴾

او كله چې ووينې هغه كسان چې شرك يې كړی دی شريكان (بُتان وغيره) خپل؛ نو وبه وايي دغه (مشركان) ای ربه ځمونږ ! دا دي شريكان معبودان ځمونږ هغه چې وو مونږ چې بلل او عبادت مو كولو (په دنيا كې د دوی) بې له تا نه، نو وبه غورځوي دغه (معبودان) دوی ته خبره چې بېشكه تاسې خامخا دروغجنان يئ.

**تفسير:** يعني مونږ د دوی له شامته ووژلی شو، ښايي مطلب يې داسې وي چې مونږ بالذات بې قصوره يو، يا دا چې دوی ته دوچنده سزا وركړه ! (پس بېرته به وغورځوي خبره د دوی، او دا بتان به هم الله تعالى ګويان كړي، او دغو مشركانو ته به ووايي چې بېشكه تاسې دروغجنان يئ چې مونږ مو د پاك الله شريكان درولي وو، مونږ كله تاسې ته ويلي وو چې ځمونږ عبادت وكړئ، في الحقيقت تاسې يواځې د خپلو اوهامو او د چټي (بېكاره) خيالاتو په عبادت كې لګيا وئ، چې هغه هيڅ اصل او حقيقت نه درلود، يا د پيريانو او شيطانانو عبادت به مو كولو، مګر هلته شيطان هم په داسې وينا سره له دوی نه ځان بېلوي: ﴿وَمَا كَانَ لِيَ عَلَيْكُم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا أَن دَعَوْتُكُمْ فَاسْتَجَبْتُمْ لِي ۖ فَلَا تَلُومُونِي وَلُومُوا أَنفُسَكُم﴾ (۱۳ جزء د ابراهيم سورت (۲۲) آيت (۴) ركوع).

الغرض هغه شيان يې چې خپل معبودان ګرځولي وو؛ هغوی ګرد به د خپل د بېلتون او بېزارۍ اظهار او اعلان له هغو سره كوي، څوك به په رښتيا سره او څوك به په دروغو سره، تيږي (ګټې) او د نورو شيانو بُتان خو د دغه خبرې څخه په قطعي ډول خپله بېخبري ښكاره كوي، ملائكې او انبياء او صالحين به له شركه او كفره د خپل د دائمي سخت نفرت اظهار او د خپل د خالصې بندګۍ اقرار كوي، پاتې شول شياطين اګر كه د دوی دغه د نفرت اظهار به په دروغو سره وي؛ خو بيا هم له هغه څخه مشركين به په كلي ډول مأيوس كيږي، او پخپلو منځونو كې به سره و ايي چې: نن ځمونږ هغه لوی رفيق هم ځمونږ په كار رانغی، او زړه مو پرې ښه نشو.

﴿وَاَلْقَوْا اِلَى اللّٰهِ يَوْمَئِذِ ِالسَّلَمَ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ﴾ ۸۷

او وبه غورځوي دغه (مشركان) الله ته په دغې ورځې كې صُلحه (او اقرار به وكړي په ګناه خپلې په عاجزۍ سره) او وركك به شي له دوى نه هغه چې وو دوى چې دروغ به يې تړل (پر الله).

تفسير: يعنې ټول شورماشور او طمطراق او افتراء تړل به په هغه وخت كې غائبېږي، ګرد به عاجز او مقهور كيږي، او د الله تعالى په حُضور كې به د اطاعت او انقياد اظهار كوي: ﴿اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ يَوْمَ يَاْتُوْنَنَا﴾ (۱۶ جزء د مريم سورت (۳۸) آيت، (۲) ركوع).

﴿اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ زِدْنٰهُمْ عَذَابًا فَوْقَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يُفْسِدُوْنَ﴾ ۸۸

هغه كسان چې پخپله كافران شوي دي او اړولي دي دوى (نور خلق هم په دنيا كې) له لارې د الله، زيات به كړو مونږ دوى تـه (په آخرت كې) يو عذاب له پاسه د بل عذاب په سبب د هغه چې وو دوى چې فساد به يې كولو، (چې كفر او منع ده د اسلامه).

تفسير: يعنې يو عذاب د حق په انكار او بل په دې چې نور خلق يې د الله تعالى له لارې څخه منع كړي دي، يا يو عذاب د جرم پر صدور او بل د هغه د عادت اچولو په تعميم باندې، په هر حال له آيت څخه معلوم شو، چې څرنګه په جنت كې د اهل الجنّت منازل او مدارج متفاوت وي، په جهنّم كې به هم د دوزخيانو مدارج له كميّت او كيفيّت او نوعيّت له پلوه سره متفاوت وي.

﴿وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِيْ كُلِّ اُمَّةٍ شَهِيْدًا عَلَيْهِمْ مِّنْ اَنْفُسِهِمْ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيْدًا عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ ۭ وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً وَّبُشْرٰى لِلْمُسْلِمِيْنَ﴾ ۸۹

او (ياد كړه اى محمده دوى ته) هغه ورځ چې راپورته به كړو مونږ په هر امّت كې يو شاهد (نبي) په (ويلو او كولو د) دوى باندې له نفسونو (قومونو، قبيلو) د دوى، او رابه ولو مونږ تا (هم اى محمده) شاهد پر دغو كسانو؛ او نازل كړى لېږلى دى مونږ پر تا (اى محمده !) كتاب (قرآن چې دى) بيان واضح لپاره د هر (ديني) څيز او هدايت (حق ته) او رحمت دى او زيرى (په جنت سره) خاص مسلمانانو ته.

تفسير: يعنې هغه هولناكه ورځ د ياد ساتلو وړ ده، كله چې هر يو نبي به د خپل د امّت د معاملاتو په نسبت د الله جل جلاله په دربار كې بيان وركوي، او څمونږ نبي كريم صلى الله عليه وسلم به هم د دې امّت حالات بيانوي، بلكه د ځينو مفسّرينو له قوله سره موافق محمد صلى الله عليه وسلم به د ګردو شهداوو لپاره داسې شاهدي اداء كوي، چې ښشكه دوى خپل منصبي فرائض په ښه شان سره اداء كړي دي.

﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ﴾ الآية - يعنې په قرآن كې تمام د هدايت علوم، او د دين اصول، او د دارينو د فلاح په متعلّق ضروري امور او نهايت مكمّل او واضح بيان شته، په دغه كې د قيامت هغه واقعات هم راغلل، چې د هغو ذكر پاس تېر شو، په دغه صورت پر هغه نبي چې داسې جامع كتاب لېږلى شوى دى؛ د هغه مسئوليت او ذمه واري به هم ډېره درنه او ثقيله وي، ګواكې د ﴿شَهِيْدًا عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ﴾ څخه وروسته ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ يې فرمايلى، د محمد صلى الله عليه وسلم عظيمه مرتبه او د هغې مرتبې سره مناسب د مسئوليت په لوري يې لطيفه اشاره وفرمايله، ﴿فَلَنَسْـَٔلَنَّ الَّذِيْنَ اُرْسِلَ اِلَيْهِمْ وَلَنَسْـَٔلَنَّ الْمُرْسَلِيْنَ﴾ (۸ جزء د الأعراف سورت (۶) آيت لومړى ركوع)، ابن كثير (رحمه الله تعالى) دغه لږ څه په تفصيل سره بيان كړې ده.

﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَىٰ وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ ۚ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾ ﴿٩٠﴾

بېشکه الله امر (حُکم) کوي په عدل (انصاف کولو) سره، او په احسان (نیکي کولو) سره، او په ورکړې سره خاوندانو د خپلوی ته، او منع کوي له قبیحه وو کارونو څخه، او له بدو کارونو او له سرکښی څخه، پند درکوي تاسې ته (په دغو اوامرو نواهیو سره) لپاره د دې چې تاسې پند واخلئ.

تفسیر: لوی قرآن یې ﴿تِبۡيَٰنٗا لِّكُلِّ شَيۡءٖ﴾ فرمایلی وو، دا آیت د هغه یوه نمُونه ده، ابن مسعود رضي الله تعالی عنه فرمایي چې: «الله تعالی د هر یوه خیر او شر بیان په دغه آیت کې سره راغونډ کړی دی، ګواکې چې هیڅ یوه داسې عقیده، نېک خلق، عمل، معامله، ښه او بد به نه وي؛ چې امراً یا نهیاً د دې آیت لاندی کې رانشي».

ځیني علماء لیکي: که د پاک قرآن بل آیت نه وی؛ نو یواځې همدغه آیت د ﴿تِبۡيَٰنٗا لِّكُلِّ شَيۡءٖ﴾ د تثبیت لپاره هم کافي وو.

ښایي د همدې لپاره راشد خلیفه عمر بن عبد العزیز (رحمه الله) دغه آیت د جمعې او د عیدینو په آخري خطبې کې درج کړ، او محمدي امت ته یې یوه حسنه أسوه قائمه کړه (رحمه الله تعالی).

د دې آیت د جامعیت پوهولو لپاره د یو مستقل تصنیف ضرورت دی، خو بیا هم لږ څه اندازه دې داسې وکړی شي، چې په دغه آیت کې د درې شیانو امر فرمایلی شوی دی:

(١): عدل، (٢) احسان، (٣) ایتاء ذي القربی:

(١): د عدل مطلب دا دی چې د انسان تمام عقائد ـ أعمال ـ أخلاق ـ معاملات ـ جذبات ـ د اعتدال او انصاف په تله کې تللی شوي، او له افراطه او تفریطه هیڅ یوه پله یې لاندې باندې نه وي، که له خپل کوم ډېر سخت او غلیظ دښمن سره هم معامله کوي؛ ښایي چې د انصاف له اساسه او اصوله وانه وړي ! د ده ظاهر او باطن ښایي چې یو شان وي ! هره هغه خبره چې د خپل ځان لپاره نه غوره کوي؛ هغه دې د خپل بل ورور لپاره هم غوره نه کړي.

(٢): د «احسان» معنی دا ده چې ښایي انسان بالذات د نېکی او ښېګڼې (فائدې) مجسمه شي، او د نورو لپاره ښه وغواړي، د عدل او انصاف له مقامه لږ څه پورته شي، او د فضل او عفو او تلطّف او ترحّم عادت ځان ته غوره کړي، د فرائضو د اداء کولو څخه وروسته د تطوّع او تبرّع په طرف قدم واخلي !، له انصافه سره دې مروت جمع کړي !او یقین دې ولري ! هره هغه نیکي چې دی یې کوي؛ الله تعالی هغه ګوري، او د هغه د لوی دربار د ښېګڼې (نېکی) جزاء هرومرو د ښېګڼې په صورت کې وررسیږي !، لکه چې د «صحیح البُخاري شر یف» په یوه مبارک حدیث کې راغلي دي: «الإحسان أن تعبد الله كأنك تراه، فإن لم تكن تراه فإنه يراك» او په ٢٧ جزء د «الرحمن» سورت په (٦٠) آیت (٣) رکوع کې همداسې یو آیت لولو: ﴿هَلۡ جَزَآءُ ٱلۡإِحۡسَٰنِ إِلَّا ٱلۡإِحۡسَٰنُ﴾

(٣): ایتاء ذي القربی، یعني ورکړه او احسان او ښېګڼه کول له خپلوانو سره هم د الله تعالی خوښ دي، واقعاً چې عدل او احسان یا په بل لفظ (انصاف او مروت) خو د خپل ځان او هر خپل او پردي او دوست او دښمن سره متعلق دی، لیکن د اقاربو حق دی له اجانبو څخه څه زیات وپالل شي ! او هغه تعلّقات چې الله تعالی په منځ کې قائم کړي دي؛ د هغه رعایت دې خامخا وکړی شي ! بلکه له اقاربو سره همدردي او له هغه سره مروت او احسان دې له پردیو څخه زیات وکړی شي، «صلة الرحم» یوه مستقله نیکي ده، چې ښایي د اقاربو او ذوي

الأرحامو لپاره درجه په درجه استعمال کړی شي، اوس د دغو دریو الفاظو جامعیت تر نظر لاندې نیولی هر یو پوه سړی فیصله کولی شي؛ چې هغه کومې نورې فطري ښېګڼې او نېکۍ داسې په دنیا کې به پاتې وي، چې د دغو درې فطري له احاطې څخه د باندې وي؟ فلله الحمد والمنّه.

﴿وَيَنْهَىٰ عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ﴾ الآية ـ یعنې منع هم له دریو شیانو څخه فرمایي:

(۱): فحشاء، (۲): منکر، (۳): بغي، یعنې ځکه چې د انسان په وجود کې هم درې قوّتونه شته، چې د هغو د بې موقعه او غلط استعمال څخه ګردې خرابۍ او بدۍ پیدا کیږي:

(۱): شهواني بهیمي قوت.

(۲): شیطاني وهمي قوّت.

(۳): سبعیه غضبي قوّت.

غالبًا له «فحشاء» څخه هغه بېحیا خبرې مراد دي چې د هغو منشأ د شهوت او بهیمیت افراط وي، «منکر» د «معروف» ضد دی، یعنې هغه نامعقوله کارونه چې ترې سلیمه فطرت او صحیح عقل انکار وکړي، ګواکې چې د شیطاني وهمي قوې د غلبې څخه د ملکیه عقلي قوه پړه شي.

دریم شی یې «بغي» یعنې سرکښي او یاغیتوب دی، چې سړی په بغاوت سره له حده تېر شي او په ظلم او تعدي ملا وتړي، او د ځیروونکو ځناورانو په شان ځیرولو، داړلو، شکولو، او ځغلیدلو پسې ولویږي، او د نورو د ځان یا د مال ـ یا پت (عزت او آبرو) او نورو شیانو د نیولو لپاره په ناحقه سره لاس وغځوي، داسې حرکات د خپلو ګردو اقسامو سره د سبعیه غضبي قوت د بېځایه استعمال څخه پیدا کیږي.

خلاصه دا چې په دغه آیت کې یې تنبیه فرمایلې ده، تر هغه پورې چې انسان دغه درې واړه قواوې اداره نه کړي، او په خپل قابو کې یې ونه ساتي، او ملکیه عقلي قوه پر دغو نورو قواوو حاکمه ونه ګرځوي؛ له سره پاک او مهذّب کېدی نشي.

أکثم بن صیفي رضي الله تعالی عنه د دې آیت کریمه د اورېدلو څخه وروسته خپل قوم ته وویل: «زه ګورم چې دغه رسول الله صلی الله علیه وسلم د ګردو عمده وو او اعلی وو اخلاقو حکمونه صادروي، او له ټیټو او سپکو اخلاقو او اعمالو څخه ممانعت کوي، نو د دې په منلو او اطاعت کې جلتي وکړئ» ! «فکونوا في هذا الأمر رؤوسا ولا تکونوا فیه أذنابا» «تاسې په دغه سلسله کې سر شئ ! او لکۍ مه کېږئ !»، عثمان بن مظعون رضي الله تعالی عنه فرمایي چې: د دې آیت د اورېدلو څخه ځما په زړه کې ایمان راسخ شو، او د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم محبّت مې په زړه کې ټینګ شو.

وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدتُّمْ وَلَا تَنقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا ۚ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ ﴿٩١﴾

او وفا کوئ تاسې په عهد د الله کله چې په خپلو منځونو کې سره وعده وتړئ، او مه ماتوئ تاسې قسمونه وروسته د محکم کولو د هغو حال دا چې په تحقیق ګرځولی دی تاسې الله پر خپلو ځانونو شاهد (ضامن ساتونکی په وفا سره)، بېشکه الله ته معلوم دي هر هغه څه (هم) چې کوئ یې تاسې.

تفسیر: په پاس آیت کې د درې شیانو د کولو یا د پرېښودلو حکم وشو، اوس د هغه ځینې افراد بالتخصیص بیان فرمایي، یعنې د عهد د ایفاء تأکید، د غدارۍ او بد عهدۍ څخه ممانعت چې دغه شی علاوه پر دې چې په «في نفسه»

مهتم بالشان دی؛ د هغه وخت مخاطبینو له حاله سره زیات مناسب وو، او د هغه اثر د مسلمانانو اقوامو پر عروج او ترقي او د هغو د مستقبل بري او کامیابۍ باندې لوېدونکي وو، نو ځکه يې حکم وکړ، لکه چې د الله تعالی نوم یادوئ، او قسمونه پرې خورئ، او معاهده پرې تړئ، نو د الله تعالی د نامه حُرمت او عزّت په ښه شان سره وساتئ ! که له کوم قوم یا له کوم سړي سره مو معاهده وي (په دې شرط چې خلاف الشرع نه وي)؛ نو ستاسې او د هر مسلمان وظیفه دا ده چې هغه پوره کړئ، اګر که د هغې په ایفاء کې ډېر مشکلات او مصاعب هم درپېښ شي.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّتِي نَقَضَتْ غَزْلَهَا مِنْ بَعْدِ قُوَّةٍ أَنكَاثًا تَتَّخِذُونَ أَيْمَانَكُمْ دَخَلًا بَيْنَكُمْ أَن تَكُونَ أُمَّةٌ هِيَ أَرْبَىٰ مِنْ أُمَّةٍ ۚ إِنَّمَا يَبْلُوكُمُ اللَّهُ بِهِ ۚ وَلَيُبَيِّنَنَّ لَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٩٢﴾

او مه کېږئ تاسې (په نقض د عهد کې) په شان د هغې (ښځې) چې بېرته به يې اومه کول تارونه وریشلي خپل وروسته د محکم والي (د هغه په تاوولو د هغو سره) حال دا چې ټوټې ټوټې وي، حال دا چې نیسئ تاسې عهدونه خپل دخل (پلمه، ټګي، مکر، خیانت) (یو له بل سره) پخپلو منځونو کې، په سبب د دې چې شوه به یوه ډله دغه ډېره زیاته له هغه بلې ډلې څخه (نو تاسې به خپل عهد ماتوه، له یوې ډلې سره به یو ځای کېدی)، بېشکه همدا خبره ده چې آزمويي تاسې الله په (وفا د) دغې (وعدې) سره؛ او خامخا بیان به کړي هرومرو (الله) تاسې ته په ورځ د قیامت کې هغه شی چې وئ تاسې چې په هغه کې مو سره اختلاف کولو (په جزاء درکولو سره).

تفسیر: یعني له عهد تړلو څخه وروسته د هغه ماتول داسې د حماقت کار دی، لکه چې کومه ښځه ټوله ورځ تار وریشي، وغړي، بیا دغه خپل جوړ، تیار وریشلی شوی تار یا اوبدلي یا ګنډلي کالي (کپړې) د ماښام په وخت کې بېرته اومه کړي، یا يې بیخي وشلوي، یا يې وشکوي او ټوټې ټوټې يې کړي، لکه چې په مکې معظمې کې یوې لېونۍ ښځې (ریطه بنت سعده) نامې به همداسې کول، مطلب يې دا دی چې لکه د اوم تار په شان د معاهداتو ګڼل چې هر کله مو زړه وغواړي همغسې يې وریشئ، او هر کله چې مو زړه وغواړي، د خپلو ګوتو په یوه ادنی حرکت يې وشکوئ؛ نو دغه سخت ناعاقبت اندیشي او لېونتوب دی، که هر لفظ او قول او عهد او پیمان ته اعتبار نشي پاتې؛ نو د دنیا نظام بیخي خراب او مختل کیږي، هغه اقوام چې د عدل او انصاف له قانونه مخ اړوي، او محض د خپلو اغراضو او خواهشو پسې تل ګرځي؛ نو د دوی په نزد د معاهدې ماتولو لپاره تړلې کیږي، او هر کله چې خپل معاهد قوم کمزوره او ناتوانه ووینې؛ نو ګرد معاهدات څیروي، او د ردیو په ټوکرئ کې يې غورځوي (پاک الله د دې بد عادت) په نسبت داسې فرمايي: معاهدې او قسمونه د فریب ـ دغابازی، مکاری، پلمې، او حیلې آله مه جوړوئ ! لکه چې د اهل جاهلیت عادت وو: څه مهال چې کوم جماعت به يې له خپلو ځانونو څخه قوي او طاقتور لیدل؛ نو سمدلاسه به يې د هغوی سره خپله معاهده غوټه کوله، خو هر کله چې د دغو خلفاوو د کمزور کولو او د خپلو ځانونو د لویولو لپاره کوم فرصت او موقع يې په لاس ورتله، نو سمدلاسه به يې هغه معاهدات ماتول، او هغه ګرد قسمونه او حلفونه به يې د هېرې په تاخچه کې کېښودل، کټمټ (هوبهو) لکه هغه وضعیت چې نن پرون د اروپایي اقوامو معتاد او معمول دی.

وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَٰكِن يُضِلُّ مَن يَشَاءُ وَيَهْدِي مَن يَشَاءُ ۚ وَلَتُسْأَلُنَّ عَمَّا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾

او که اراده فرمایلې وی الله؛ نو خامخا ګرځولي به يې وئ تاسې یو امت (یو ټولی متفق په اسلام)، ولیکن (پاک الله) ګمراه کوي هر هغه څوک چې اراده وفرمايي (د ګمراهۍ يې)، او په لاره

(د حق) برابروي هر هغه څوک چې اراده وفرمايي (د هدايت يي)، او خامخا وبه پوښتېدلی شئ تاسې هرومرو له هر هغه عمله چې وئ تاسې (په دنيا کې) چې کولو به مو.

**تفسير:** يعنې الله تعالی په دې باندې قادر وو، چې اختلاف ته به يې له سره لاره نه ورکوله، مګر حکمت يې د دې خبرې مقتضي نشو، لکه چې مو په ځو ځو مواقعو کې دغه تقرير کړی دی، شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «له دې نه معلومه شوه چې له کافر سره دې هم غدر او بد عهدي ونه کړی شي، کفر په دغو خبرو نه لري کيږي، مګر د دغې چارې د کولو ګناه او وبال د ده پر عامل باندې لويږي.

وَلَا تَتَّخِذُوٓا۟ أَيْمَـٰنَكُمْ دَخَلًۢا بَيْنَكُمْ فَتَزِلَّ قَدَمٌۢ بَعْدَ ثُبُوتِهَا وَتَذُوقُوا۟ ٱلسُّوٓءَ بِمَا صَدَدتُّمْ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۖ وَلَكُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٩٤﴾

او مه نيسئ تاسې قسمونه خپل (وعدې خپلې) دخل (مکر او فريب) پخپلو منځونو کې، نو وبه ښويږي قدم (ستاسې د لارې د اسلامه) وروسته له ټينګېدو د هغه، نو وبه څکئ غم او رنځ په سبب د منع کولو ستاسې نورو خلقو لره له لارې د الله نه (يعنې د نه وفا په وعدې باندې)، او شته تاسې ته عذاب لوی (ای متخلفينو د وعدې په آخرت کې).

**تفسير:** يعنې په عهد ماتولو او قسم يادولو سره د بد عهدۍ لاره مه پيدا کوئ، او په دې سره اسلامي قوم مه بدناموئ، چې ستاسې له دغسې خراب او ټيټ (لاندې) سيک وضعيت د ليدلو څخه يقين راوړونکي به په شک کې لويږي، او غير مسلم اقوام به د اسلام له دُخوله ستانه (واپس) کيږي، او پر تاسې د الله له لارې د امتناع ګناه په غاړه کيږي، چې د هغه سزا به ډېره سخته وي.

وَلَا تَشْتَرُوا۟ بِعَهْدِ ٱللَّهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۚ إِنَّمَا عِندَ ٱللَّهِ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٩٥﴾

او مه پېرئ (مه اخلئ) په عهد د الله (په لفظ د الله تعالی) قيمت لږ (پيسې لږې)، بېشکه هغه (ثواب) چې په نزد د الله کې دی همغه خير (غوره) دی تاسې ته، که چېرې يئ تاسې چې پوهېږئ (پخير خپل).

**تفسير:** پخوا له دې نه پخپلو منځونو کې د قول ماتولو ذکر وو، اوس د الله تعالی سره د قول ماتولو ذکر دی، يعنې د مال په طمع خلاف الشّرع حکم مه کوئ، ځکه چې بالآخر دغسې مال د ځان وبال ګرځي، هر هغه شی چې د شرعې سره موافق ستاسې په لاسونو کې راشي؛ همغه بهتر دی، کذا في «موضح القرآن»، يا د ايفاء العهد کوم اجر چې د الله تعالی له درباره ورکاوه کيږي، هغه د دغه قليل ثمن څخه ډېر بهتر دی، ثمن يې ځکه قليل وفرمايه؛ چې که ګرد جهان هم ورکړ شي، خو بيا هم هغه د آخرت په مقابل کې قليل او حقير دی.

مَا عِندَكُمْ يَنفَدُ ۖ وَمَا عِندَ ٱللَّهِ بَاقٍ ۗ وَلَنَجْزِيَنَّ ٱلَّذِينَ صَبَرُوٓا۟ أَجْرَهُم بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿٩٦﴾

هغه (مال د دنيا) چې تاسې سره دی؛ فناء کيږي، او هغه (خزانې د رحمت) چې د الله سره دي؛ باقي دي (فناء نه لري)، او خامخا به جزا ورکړو مونږ هرومرو هغو کسانو ته چې صبر يې کړی دی (په طاعت او مصيبت او له معصيت نه) اجر د دوی په ډېر ښه د هغو د نېکيو سره چې وو دوی (په دنيا کې) چې کولې به يې.

تفسیر: بیا نو د دائم او باقي پر ښنودل، او د فاني او زائل خوښول د کوم ځای عقلمندي ده، یعنې هغه کسان چې د الله تعالی پر عهد ثابت قدم پاتې کیږي، او ګرد مشکلات او مصاعب په صبر او استقامت سره پر ځان اخلي، د هغه اجر له سره ضائع کېدونکی نه دی، او د داسې ښو اعمالو بدل هرومرو ځمونږ له درباره ورکولی کیږي.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَىٰ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهُ حَيَوٰةً طَيِّبَةً وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَجْرَهُمْ بِأَحْسَنِ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۹۷﴾

هر چا چې وکړ نېک (عمل) له نارینه ځخه یا له ښځې ځخه حال دا چې دی مؤمن وي؛ نو خامخا ژوندون به ورکړو هرومرو هغه ته ژوندون طیبه (پاکیزه)، او خامخا جزاء به ورکړو هرومرو دوی ته اجر د دوی په ډېر ښه، په سبب د هغو (نېکیو) سره چې وو دوی (په دنیا کې) چې کولې به یې.

تفسیر: په پاس آیت کې د صابرینو او پر عهد باندې د وفاء کوونکیو د اجر ذکر وو، دلته د ګردو صالحه وو اعمالو په متعلق یوه عمومي ضابطه بیان فرمایي، حاصل یې دا دی: هر هغه نارینه یا ښځه چې په نېکو کارونو کې معتاد شي، په دې شرط سره چې هغه کار یواځې صورتاً نه، بلکه حقیقتاً نېک وي، یعنې د ایمان او د صحیحه معرفت روح پخپل منځ کې ولري؛ نو مونږ به هغه ته هرومرو پاک، صاف، مطهر، او خوندور ژوندون ورعنایت کوو، مثلاً په دنیا کې حلاله روزي، قناعت، د زړه غناء، سکون، طمانیت، د ذکر الله لذت، د الله تعالی د محبّت خوند، د عبودیت د فرض په اداء کې خوښي، د کامیاب مستقبل د تصور هغه مزه او د تعلق مع الله هغه حلاوت ورکوو.

تنبیه: په دغه آیت کې یې دغه راوښود چې د لوی قرآن په نظر کې د ښځو او د نارینه وو د نیکۍ او کامیابۍ لپاره یوه ضابطه ده، یعنې نارینه او ښځه بې له امتیازه د خپل حسب الحال سره سم په نیکۍ کولو سره پاک او مطهر ژوندون حاصلولی شي.

فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْءَانَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَٰنِ الرَّجِيمِ ﴿۹۸﴾

نو کله چې لولې (ته) (پاک) قرآن؛ نو پناه وغواړه په الله له شیطان رټلي شوي (په شعلو سره).

تفسیر: په حدیث کې راغلي دي: «خیرکم من تعلم القرآن وعلمه»، «ډېره غوره له ستاسې هغه څوک دی چې قرآن زده کوي، او نورو ته یې هم ورښیي»، معلوم شو چې د مؤمن لپاره د لوی قرآن قرائت ډېر ښه کار دی، او په پخوانیو آیاتو کې پر ښو کارونو د دوو څلو اجر ورکولو ذکر شوی وو، نو ځکه دلته د قرآن د قرائت د ځینې آدابو تعلیم فرمایي، څو کوم سړی د بې احتیاطی د دغه ډېر ښه کار له اجره بې برخې پاتې نشي، او خپل ثواب ضایع نه کړي، د شیطان زیار (محنت) او کوښښ تل په دغه کې دی، چې د انسانانو ښو کارونو ته نقصان ورسوي، تر څو یې ترې ستون کړي، خصوصًا د لوی قرآن د قرائت په شان د یوه داسې متبرک او مقدس کار ځخه چې د ګردو نېکیو سرچینه ده؛ هرومرو ممانعت کوي، او په سړه سینه ورته نشي کتلی، نو کله چې مؤمن د قرآن دغه د قراءت اراده کوي؛ نو ړومبی دې د زړه په صدق سره پر الله تعالی اعتماد او توکل وکړي، او د مردود شیطان د پلمو (تدبیرونو) او وسوسو ځخه دې پاک الله پورې پناه ونیسي: «أعوذ بالله من الشیطان الرجیم».

تنبیه: ځرنګه چې د پاک قرآن ابتداء په «تعوّذ» سره مسنونه ده؛ نو ځکه هر لوستونکي ته ښایي چې پخوا د عظیم الشأن قرآن له لوستلو ځخه «تعوّذ» ووایي، د «تعوّذ» مأثوره عبارت هم داسې دی لکه چې پاس ولیکل شو، معنی یې دا ده چې: «پناه غواړم په الله تعالی له شره د شیطان رټلي شوي».

إِنَّهُۥ لَيْسَ لَهُۥ سُلْطَٰنٌ عَلَى ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ ﴿٩٩﴾

بېشکه دا (شیطان) نشته ده ته (هیڅ قدرت) تسلّط او غلبه پر هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی، او پر رب خپل توکّل (اعتماد) کوي.

**تفسیر:** یعنې هر څوک چې پر پاک الله اعتماد او توکل وکړي، او له هغه څخه پناه وغواړي، پر هغه، شیطان په زور او قوّت سره نه حاوي کېدی شي، که داسې کوم سړی تش د څه لږ وخت له مخې د بشریت په مقتضی د شیطان په پلمه (تدبیر) کې ولویږي، خو بیا هم شیطان پرې خپله کامله قبضه او تسلّط نشي قائمولی، او ډېر ژر به د ده سترګې د همدغې استعاذې پر برکت خلاصیږي، او غفلت به یې نه متمادي کیږي، لکه چې په (۹ جزء د الأعراف سورت په (۲۴) رکوع (۲۰۱ـ۲۰۲) آیت کې راغلي دي: ﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ ٱتَّقَوْا۟ إِذَا مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ ٱلشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا۟ فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ * وَإِخْوَٰنُهُمْ يَمُدُّونَهُمْ فِى ٱلْغَىِّ ثُمَّ لَا يُقْصِرُونَ﴾

إِنَّمَا سُلْطَٰنُهُۥ عَلَى ٱلَّذِينَ يَتَوَلَّوْنَهُۥ وَٱلَّذِينَ هُم بِهِۦ مُشْرِكُونَ ﴿١٠٠﴾

بېشکه خبره همدا ده چې تسلّط د شیطان پر هغو کسانو دی چې دوستي کوي دوی له ده سره، او پر هغو کسانو دی چې دوی له دغه (الله) سره شریک ګرځوونکي دي (د بل شي).

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې په لوی لاس شیطان خپل ملګری او رفیق وګرځوي، او د دې په ځای چې پر پاک الله اعتماد او توکل وکړي، پر شیطان زړه تړي، او پرې مطمئن او ډاډه کیږي، ګواکې شیطان له الله تعالی سره شریک دروي، یا د ده په اغواء سره نور شیان له الله سره شریک کوي، نو پر داسې افرادو د شیطان پوره قبضه او تسلط دی، او په هر ډول یې چې زړه وغواړي، د خپلو ګوتو په اشارو سره یې دې خوا او هغې خوا ته نخوي او ګډوي، او هر لوري ته چې زړه یې وشي بیایې یې.

وَإِذَا بَدَّلْنَآ ءَايَةً مَّكَانَ ءَايَةٍ ۙ وَٱللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُنَزِّلُ قَالُوٓا۟ إِنَّمَآ أَنتَ مُفْتَرٍۭ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿١٠١﴾

او کله چې بدلوو مونږ (رالیږو کوم ناسخ) آیت په ځای د (بل منسوخ) آیت (لمصالح الوقت) حال دا چې الله ته ښه معلوم دی هغه څه چې رالیږي؛ نو وایي دا (کفّار نبي ته) بېشکه همدا خبره ده چې ته دروغ تړونکی یې (په الله)، بلکه زیات د دوی نه پوهیږي (په حکمت د نسخې).

**تفسیر:** پخوا یې حکم ورکړ چې د قرآن عظیم الشأن د لوستلو په وخت کې د شیطان رجیم له ټګي ټوری څخه پناه وغواړئ چې هغه په دغه ښه او مبارک کار کې څه موانع او مشکلات دروړاندې نه کړي، دلته د هغه د ځینو موانع ذکر کوي، چې د پاک قرآن په متعلق یې هغه پیدا کوي، واقعه خو دا ده چې پوره قرآن خو یو ځلي نه دی نازل شوی، بلکه موقع په موقع د هغه آیات نازلېده، مثلاً په اول کې یې د کفّارو له قتاله ممانعت فرمایلی وو، څه مدّت وروسته مسلمانانو ته امر ورکړ شو، چې له کفّارو او مشرکانو سره جهاد وکړي، یا په ابتداء کې یې حکم فرمایلی وو: ﴿قُمِ ٱلَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ نِّصْفَهُۥٓ﴾ الآیة ـ لږ مدّت وروسته په همغه «معظمه مکه» کې دغه آیت نازل شو: ﴿عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۖ فَٱقْرَءُوا۟ مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ ۚ﴾ الآیة.

کفّارو د داسې احکامو د اوریدلو څخه اعتراض کولو، چې دغه څرنګه د پاک الله کلام کېدی شي؟ آیا الله تعالی (معاذ الله) له بېخبرۍ څخه د هغې یوې خبرې حکم درکړی وو؟ بیا چې خبر شو نو بل حکم یې صادر کړ؟ معلومیږي

چې دغسې خبرې ته له خپله ځانه جوړوې، که نه د الله تعالی کلام له سره پر دغسې احکامو نشي مشتملېدی، چې يوه ورځې يو شی ووايي، او بله ورځ بله شی ووايي، ممکن وو چې هم داسې وساوس او شبهات شيطان د ځينو مسلمانانو په زړونو کې القاء کړي، نو د هغه ځواب ورکوي چې دغه ستاسې اعتراض محض جهالت او ناداني ده، که تاسې ته د نسخې حقيقت معلوم وی؛ نو له سره به مو داسې الفاظ له خپلې ژبې څخه نه وې ايستلې.

د نسخې مطلب تش هم دغومره دی چې د يوه ميعادي حکم د ميعاد د پوره کېدلو څخه وروسته بل حکم ولېږلی شي، آيا که يو طبيب د لسو يا شلو ورځو لپاره د منضج نسخه تجويز کړي، او وروسته له هغه د مسهل تجويز وکړي، نو دغه تجاويز د هغه طبيب پر لا علمی محمول کولی شي؟ يا که هغه سړی چې داسې خبرې کوي پخپله جاهل او ناپوه دی؟ الله تعالی ته پخپله ښه معلوم دي چې په هر وخت کې هر حکم يې نازل فرمايلی دی؛ همغه درست او صحيح دی، يعنې هغه روحاني غـذاء يا دواء چې تجويز کړی شوې ده، تر کوم حده پورې د رُوحاني مريضانو له مزاجه او حالاتو سره مناسبه ده؟.

قُلْ نَزَّلَهُ رُوحُ الْقُدُسِ مِن رَّبِّكَ بِالْحَقِّ لِيُثَبِّتَ الَّذِينَ آمَنُوا وَهُدًى وَبُشْرَىٰ لِلْمُسْلِمِينَ ﴿۱۰۲﴾

ووايه (ای محمده دغو کفارو ته چې) نـازل کړی دی دغه (قرآن) روح پاک (جبريل) (له طرفه) د رب ستا په حقه سـره، لپاره د دې چې ثابت کړي (په حقّانيت د قرآن) هغه کسان چې مؤمنان دي او هدايت دی او زيری (د جنّت) دی لپاره د مسلمانانو.

تفسير: يعنې دغه ځما يا ځما پشان د کوم بل انسان جوړ کړی کلام نه دی، دا خو هغه کلام دی چې بلا شبهه ځما رب د روح القدس جبريل الأمين په ذريعه د حکمت او مصلحت سره موافق پر ما باندې نازل فرمايلی دی، ګواکې ﴿مِن رَّبِّكَ﴾ يې وويل، او تنبيه يې وفرمايله چې د دغه لوی قرآن نازلوونکی هغه أعلی او أرفع او أقدس ذات دی، چې پخپله محمد صلى الله عليه وسلم يې په داسې يوې حيرت انګېزې طريقې سره او په داسې اعلی او اکمل اخلاق سره تربيه وفرمايه، چې ستاسې په مقابل کې دی، او د روح القدس د بيان فرمايلو څخه ښايي چې په دې لوري اشاره وي، هغه کلام چې حامل يې ﴿رُوحُ الْقُدُسِ﴾ ګرځولی شوی دی، ښايي چې د روحانيت، طهارت، او د ملکيه وو صفاتو مجسمه وي، لکه چې وی ګورئ چې په دغه شان او اوصاف تر اسمان لاندې بل داسې افصح ابلغ او معجز کلام په نظر نه راځي، او دغه قرآن يې ځکه نازل فرمايلی چې ټينګ کړي په حقيقت د دې کلام باندې زړونه د هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی، يعنې موقع په موقع او په تدريج سره د احکامو او آياتونو د نزول د ليدلو څخه د ايمان لرونکي زړه قوي او اعتقاد يې پخېږي.

وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّهُمْ يَقُولُونَ إِنَّمَا يُعَلِّمُهُ بَشَرٌ لِّسَانُ الَّذِي يُلْحِدُونَ إِلَيْهِ أَعْجَمِيٌّ وَهَٰذَا لِسَانٌ عَرَبِيٌّ مُّبِينٌ ﴿۱۰۳﴾

او خامخا په تحقيق ښه معلوم دي مونږ ته؛ چې بېشکه دوی وايي چې: بېشکه همدا خبره ده چې ښوونه کوي ورته انسان (او په واقع کې داسې نه دي ځکه چې) ژبه د هغه سړي چې دوی نسبت د ښوونې کوي هغه ته عجمي ده، او دغه قرآن په ژبه د عربي ده ښکاره (فصيحه، بليغه چې د عجمي کړ کېچونو څخه بيخي مبرّا ده).

تفسير: يعنې منکرانو به ويل چې (العياذ بالله) لوی قرآن د الله تعالی کلام نه دی، که نه نسخ به په دغه کې ولې واقع کېدی، او نه دغه ای محمده ! ستا کلام کېدی شي، ځکه چې ستا اميتوب خو ګردو ته معلوم او مسلّم وو، يو داسې

امي چې نه يې لاس پر کوم کتاب لګېدلی وي، او نه يې قلم پخپل لاس اخيستی وي، بلکه سره له اعلی درجې قريشي توبه تر څلويښتو کلو پورې يو شعر يې هم پر ژبه نوي جاري شوی، چې په شعر ويلو کې د عربو تر وړکيو پورې هم فطري مهارت او ذاتي لياقت درلود، نو دغه به څوک وي؟ چې د هغه د دغه بې نهايته قابليت څخه د دغه عظيم الشأن قرآن پشان يو مستطاب کتاب تيار شوی دی.

د ده په نامه د منکرينو په زعم اختلافات وو، د جبر، يسار، عائش، يعيش، څو تنو عجمي مريو په نسبت ويلي شوي دي چې هغوی نصرانيت پرېښی او د اسلام مذهب يې قبول کړی وو، وايي چې دوی کله نا کله د رسول الله صلی الله عليه وسلم په حضور مشرّف کېدل، يا به پخپله رسول الله صلی الله عليه وسلم دوی ليدل، په هر حال د مشرکينو د دغه سفاهت د اعتراض څخه دغه خبره خو ضرور ثابته شوه، چې د بعثت څخه پخوا محمد صلی الله عليه وسلم أمّي او نالوسته وو، او د دوی په زعم دغه يوه منلې شوې خبره وه چې قرآني علوم او معارف د دوی د مسلّمه أميت سره بيخي نشي تطبيق کېدی، نو ځکه د دغې خبرې ويل لازمېږي، چې بل کوم سړی دغه عالي خبرې ورښيي، بلا شُبهه چې ځمونږ پاک رسول الله ته هم بل څوک دغه مقدّسې خبرې ورښوولې وي، ليکن دغه ښوونکی کوم يو بشر او انسان نه وو، بلکه هغه ځمونږ دغه قدير رب دی چې پخپله داسې ارشاد فرمايي: ﴿الرَّحۡمٰنُ ۞ عَلَّمَ الۡقُرۡاٰنَ﴾، ﴿لِسَانُ الَّذِيۡ يُلۡحِدُوۡنَ اِلَيۡهِ اَعۡجَمِيٌّ﴾ الآية.

يعنې که تاسې د لوی قرآن په خارقه علومو او د هغه د اعجاز په نورو وجوهو باندې د خپل جهالت او غباوت لامله نه پوهېږئ، نو د هغه د ژبې له اعجازه، د ده د فصاحت او بلاغت ادراک خو لږ څه کولی شئ، چې د هغه په متعلق څو څلې تاسې ته دعوت درکړ شوی دی، او د دغې خبرې اظهار او اعلان په تکرار سره شوی دی، چې که ټول پېريان او انسانان متفقًا سره راټول شي؛ نو د دغه کلام يوه لږه نمونه او مثال هم نشي راوړاندې کولی، نو بيا د دې کلام چې د هغه نظير او مماثل راوړلو څخه د عربو ټول شعراء، فصحاء، بلغاء او پوهان بلا استثناء ګرد سره عاجز او پاتې وي؛ نو يو مجهول او معلول بازاري اعجمي مريي څخه څرنګه داسې يوه هيله (اميد) کېدی شي، چې داسې يو معجز کلام به له خپله ځانه جوړولی شي؟ که په تمامو عربو کې کوم سړي بالفرض داسې کلام جوړولی شوی؛ نو هغه هم دا ځمونږ محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم وو، مګر ما سوا له عظيم الشأن قرآنه د محمد صلی الله عليه وسلم کلام بله لويه ذخيره موجوده ده، چې د لوی قرآن د موضوعاتو بيان يې کړی دی، چې سره له خپله انتهايي فصاحت د پاک قرآن له يوه وړوکي سورت سره هم برابرې نشي کولی.

اِنَّ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۙ لَا يَهۡدِيۡهِمُ اللّٰهُ وَلَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ﴿۱۰۴﴾

بېشکه هغه کسان چې نه راوړي ايمان په آيتونو د الله (او نه وايي چې دا له طرفه د الله دی) نه ښيي دوی ته الله (لاره د نجات او جنت) او شته دوی ته عذاب دردناک.

**تفسير:** يعنې سره د ښکاره وو دلائلو له وجوده که يو سړی دغه خبره په خپل زړه کې ټينګه کړي، چې زه به خامخا پرې باور او يقين نه کوم، نو الله تعالی هم هغه ته تر مقصده پورې د رسېدلو لاره نه ورښيي، او هغه ګردې قواوې ترې سلبوي، څومره چې وپوهولی شي؛ له سره به پرې ونه پوهيږي، بد اعتقاده سړی تل له هدايته بې برخې پاتې کيږي، او بالآخر د سختو سزاوو مستحق ګرځي.

اِنَّمَا يَفۡتَرِي الۡكَذِبَ الَّذِيۡنَ لَا يُؤۡمِنُوۡنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الۡكٰذِبُوۡنَ ﴿۱۰۵﴾

بېشکه همدا خبره ده چې تړي دروغ هغه کسان چې نه راوړي ايمان په آيتونو د الله (چې قرآن دی)، او همدغه کسان همدوی دي دروغجنان.

مَنۡ كَفَرَ بِاللّٰهِ مِنۡۢ بَعۡدِ اِيۡمَانِهٖۤ اِلَّا مَنۡ اُكۡرِهَ وَقَلۡبُهٗ مُطۡمَٮِٕنٌّۢ بِالۡاِيۡمَانِ وَلٰـكِنۡ مَّنۡ شَرَحَ بِالۡكُفۡرِ صَدۡرًا فَعَلَيۡهِمۡ غَضَبٌ مِّنَ اللّٰهِ‌ۚ وَلَهُمۡ عَذَابٌ عَظِيۡمٌ ﴿١٠٦﴾

هر څوک چې کافر شو پر الله وروسته له ایمان راوړلو د ده، مګر هغه څوک چې زور پرې وکړی شو (او مجبوراً د کفر کلمه یې وویله) حال دا چې زړه د ده آرام نیوونکی وي په ایمان سره، ولیکن هغه څوک چې ارته کړي په کفر سره سینه (خپله چې راضي شي پرې اعتقادًا نو پر دوی باندې غضب دی له (طرفه د) الله، او شته دوی ته عذاب لوی (اخروي په سبب د ارتداد).

تفسیر: يو خو هغه مجرمان دي چې د سلهاوو دلائلو او آيتونو په ليدلو هم نه متيقن كيږي، مګر له دوی څخه ډېر لوی مجرم هغه دی؛ چې د يقين راوړلو او تسليم كولو څخه وروسته د شيطاني شبهاتو او وساوسو څخه متأثر شي، او له صداقته انكار وكړي، د داسې كسانو سزا وروسته بيا بيان فرمايي.

په منځ کې په ﴿اِلَّا مَنۡ اُكۡرِهَ﴾ الآية - کې يوه ضروري استثناء يې وفرمايله، يعنې که کوم مسلمان د زړه په صدق سره برابر په ايمان قائم وي، او د يوې لمحې له مخې هم ايماني رڼا او قلبي طمأنيت د ده له زړه څخه بېل شوی نه وي، مګر تش په کوم خاص حالت کې د کوم خورا ډېر زور او جبر او زبردستۍ لامله مجبور شي، او د ډېر شديد خوف له سببه د خپل ژوندانه ساتلو له خاطره تش په ژبه منکر شي، يعنې کومه کلمه د اسلام په خلاف ووايي، خو په دې شرط چې په دغه وخت کې يې هم زړه مطمئن او هيڅ قسم شک، شبهه او تردد په کې نه وي، بلکه د دغه ژبې د الفاظو په نسبت هم سخت کراهيت او نفرت ولري، نو داسې شخص مرتد نه دی، بلکه خامخا مسلمان ګڼلی کيږي، هو ! له دې نه لوی مقام او لوړه مرتبه دا ده چې انسان مرګ قبول کړي، خو د خپلې ژبې څخه داسې يو لفظ نه باسي، لکه چې د بلال، ياسر، سميّه، حبيب بن زيد الأنصاري، او عبد الله بن حُذافه رضي الله عنهم او د نورو واقعات په تواريخو او سيرتونو کې شته، او مونږ د اختصار په اعتبار دلته هغه نشو ليکلی، ښه خو به دا وي چې د دغو مطالبو د پوهېدلو لپاره تفسير ابن کثير ولوستل شي.

ذٰ لِكَ بِاَنَّهُمُ اسۡتَحَبُّوا الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا عَلَى الۡاٰخِرَةِ ۙ وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهۡدِى الۡقَوۡمَ الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿١٠٧﴾

دا (لوی اخروي عذاب) په سبب د دې دی چې دوی غوره کړی دی ژوندون لږ خسیس پر (اعلی ژواندانه د) آخرت، او بېشکه الله نه ښيي لاره (د استقامت) قوم کافرانو ته.

تفسیر: يعنې داسې منکرانو ته چې دنيوي ژوندون د خپل مقصد کعبه وګرځوئ؛ د بري او کاميابۍ لار کله په برخه کيږي.

اُولٰۤٮِٕكَ الَّذِيۡنَ طَبَعَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ وَسَمۡعِهِمۡ وَاَبۡصَارِهِمۡ‌ ۚ وَاُولٰۤٮِٕكَ هُمُ الۡغٰفِلُوۡنَ ﴿١٠٨﴾

دا (کفّار) همغه کسان دي چې مهر وهلی دی الله پر زړونو د دوی (چې نه قبلوي حق) او په غوږونو د دوی (چې نه اوري حق) او په سترګو د دوی (چې نهويني آثار د قدرت)، او دغه کسان همدوی دي غافلان (له عُقبی).

لَا جَرَمَ اَنَّهُمۡ فِى الۡاٰخِرَةِ هُمُ الۡخٰسِرُوۡنَ ﴿١٠٩﴾

دا خبره واقعي ده بلا شُبهه چې بېشکه دوی په آخرت کې همدوی دي زيانکاران (چې عمر يې حبطه لاړ).

تفسیر: یعني هغه کسان چې د خپلو بې اعتدالیو او غلط کارونو څخه د پاك الله ورعطاء کړي قوتونه تباه او بېکاره کړي وي، او تش دنیا یې د خپل مقصود کعبه ګرځولې وي؛ نو له هغوی څخه بد او خراب انجام به د بل چا وي؟.

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ هَاجَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا فُتِنُوا ثُمَّ جَاهَدُوا وَصَبَرُوا إِنَّ رَبَّكَ مِنْ بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۱۰﴾

پس له دې بیا بېشکه رب ستا لپاره د هغو کسانو چې هجرت یې کړی دی (له خپله وطنه) وروسته له هغه چې مفتون شوي دي (په عذابونو) بیا جهاد یې کړی دی او صبر یې کړی دی، بېشکه رب ستا وروسته له دغه (هجرت، جهاد او صبر) نه خامخا ښه مغفرت کوونکی دی، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: په مکې معظمې کې ځینې کسان د کافرانو له ظلم او تیري څخه ښوییدلي وو، یا تش په ژبه یې د کفر لفظ ویلی وو، وروسته له هغه یې هجرت او جهاد وکړ، او په ډېر استقلال او استقامت پر اسلام قائم پاتې شول، کله چې دوی دومره په اسلامي کارونو کې برخه واخیسته؛ نو هغه تقصیر یې ورمعاف شو، او د الله تعالی مهرباني پرې مبذوله شوه.

یو صحابي وو چې «عمّار بن یاسر» رضي الله عنه نومیده، د ده پلار «یاسر رضي الله تعالی عنه» او مور «سُمیّه رضي الله تعالی عنها» وه، چې دغه مېړه (خاوند) او ښځه د کفّارو د ډېر ربړولو (تکلیفولو) او رنځ او درد رسولو لامله اکر که شهیدان شول، خو بیا هم د کفر یو لفظ یې هم ونه وایه، دغه د مسلمانانو ړومبی ویني دي چې د اسلام په لاره کې تویې شوې، لیکن د دوی ځوی «عمار رضي الله تعالی عنه» د خپل ځان له وېرې هغه لفظ ووایه، خو وروسته له نجاته په ژړا او انګولا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور مشرّف شو، نو دلته دغه پاس آیت نازل شو، رضي الله تعالی عنهم أجمعین.

يَوْمَ تَأْتِي كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَنْ نَفْسِهَا وَتُوَفَّى كُلُّ نَفْسٍ مَا عَمِلَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿۱۱۱﴾

(یاد کړه ای محمده !) هغه ورځ چې رابه شي هر یو (نېک او بد) نفس چې جګړه (سوال او ځواب) به کوي لپاره د (نجات د) ځان خپل، او پوره به ورکړ شي هر نفس ته (جزاء د) هغه عمل چې کړی یې دی حال دا چې په دوی باندې به ظلم ونه کړ شي (په تقلیل د حسناتو یا تکثیر د سیئاتو).

تفسیر: یعني د یوه په ځای به بل څه نشي ویلی، مور، پلار، خور، ورور، ښځه، اولاد، احباب او اقارب هیڅوك به نه پکارېږي، هر سړی به پخپل غم او فکر کې اخته وي، چې څه ډول د خپل ځان لپاره یو مخلص پیدا کړي، راز راز دروغ او رښتیا خبرې به د خپل ځان د برائت او عذر لپاره جوړوي، او جواب او سوال او جګړې به کوي، چې د ځان لپاره نجات حاصل کړي.

وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ آمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً يَأْتِيهَا رِزْقُهَا رَغَدًا مِّن كُلِّ مَكَانٍ فَكَفَرَتْ بِأَنْعُمِ اللَّهِ فَأَذَاقَهَا اللَّهُ لِبَاسَ الْجُوعِ وَالْخَوْفِ بِمَا كَانُوا يَصْنَعُونَ ﴿۱۱۲﴾

او بیانوي الله مثل د یو کلي چې وو دا په امن کې، په آرام (او هوسا اهل د دې)، چې راته دغه کلي ته رزق روزي (د اهل) د دې ډېره پر بمانه له هر ځایه (له هره طرفه)، نو کافر (ناشکره) شو (اهل د) هغه په نعمتونو د الله؛ نو وڅکاوه په (اهل د) دې باندې الله کالي (کپړې) د لوږې او وېرې

(چې لوږه او وېره يې پرې لازمه او محيطه وګرځوله لکه جامه) په سبب د هغو (عملو) چې وو دوی چې کول به يې.

تفسير: ﴿اٰمِنَةً مُّطْمَىِٕنَّةً﴾ يعنې نه د باندې د دښمن څه فکر او انديښنه وه، او نه د دننه څخه کوم څه فکر او تشويش، په ډېر امن او هوسايي (آرام) سره به يې ژوندون کولو، او خوراک لپاره غلې، دانې، مېوې او نور ور راوړلې کېدې، او هر څيز به يې په افراط وو، په کور ناست دوی ته هر قسم نعمت وررسېده، نو د هغه کلي اوسېدونکو د الله تعالی د هغو نعمتونو قدر ونه کړ، او په دنيوي خوندونو کې داسې مشغول او مصروف شول، چې په دغه غفلت او مستۍ کې حقيقي منعم هم د دوی له ياده ووت، بلکه د هغه په مقابل کې يې بغاوت وکړ، بالآخر الله تعالی د دغې ناشکرۍ او د نعمت د کفران خوند پر دوی وڅکاوه، چې د امن او هوسايي (آرام) په ځای خوف، وېره، او د روزۍ د ډېروالي او پرېمانۍ په ځای د لوږې او قحط په مصيبت کې يې داسې اخته کړل، لکه چې کالې (کپړې) د خپل اغوستونکي چپ چاپېر احاطه کوي، او يوه شېبه لوږه او وېره، قحط او خوف له دوی نه نه بېلېده.

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْهُمْ فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَهُمُ الْعَذَابُ وَهُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۱۱۳﴾

او خامخا په تحقيق راغلی وو دوی ته رسول له (جنسه د) دوی نو نسبت د دروغو يې وکړ هغه ته؛ نو ونيول دوی لره عذاب (د لوږې او وېرې) حال دا چې دوی ظالمان وو (په شرک او تکذيب سره).

تفسير: علاوه پر هغو ظاهري نعمتونو چې پاس مذکور شول؛ يو ډېر لوی او مهم باطني نعمت هم هغوی ته ورکړی شوی وو، يعنې د دوی له قومه او له نسبه يې يو داسې رسول ورلېږلی وو، چې د هغه اتباع په وسيله يې د الله د خوښې ډېر لوړ مقامات هم حاصلولی شو، مګر دوی د اتباع او تصديق په ځای د ده پر تکذيب او مخالفت ملا وتړله، او همداسې پرله پسې په کندو او ژورو کې لوېدل، بالآخر د قديمي سنت الله سره سم ګرد ظالمان او ګناهګاران د الله تعالی په عذاب کې اخته او دوی يې سره ټول راګېر کړل، بيا نو د دوی د نجات لپاره د هيچا هيڅ يو تدبير پرمختګ ونه کړی شو.

ځينې مفسرين وايي چې په دغه آيت کې د کوم معين کلي تذکره نه ده، محض د تمثيل په ډول د کوم تباه او ويجاړ شوي کلي لا على التعيين حواله يې ورکړې ده، يا خو د داسې يو فرضي کلي وجود يې فرض کړی، او د مکې معظمې کفّارو ته تنبيه ورکړی شوې وه، چې که تاسې هم داسې وکړئ؛ نو تاسې سره به هم داسې معامله کېدی شي، نو د کفران نعمت او د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تکذيب او عداوت له سزا څخه مه بې فکره کېږئ.

د ځينو علماوو په نزد په دغه مثال کې له کلي څخه مراد مکّه معظمه ده چې هلته هر قسم امنيت او طمأنيت وو، او سره له دې چې يوه غير زرع وادي وه؛ خو راز راز (قسم قسم) مېوې دانې غلې او نور د دې په لوري راښکودلی شوې: ﴿اَوَلَمْ نُمَكِّنْ لَّهُمْ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَيْءٍ﴾ (۲۰ جزء د القصص سورت (۵۷) آيت (۶) رکوع)، مګر مکيانو (مکې والا) د دغو نعماوو هيڅ قدر ونه پېژندو، په شرک او عصيان او بېحيايي او اوهام پرستۍ کې لګيا او منهمک شول، بيا الله تعالی له ګردو نعمتونو څخه لوی نعمت د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په بعثت سره دوی ته ورولېږه، نو دوی د هغه په انکار او تکذيب کې هيڅ کمی ونه کړه: ﴿اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ بَدَّلُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ كُفْرًا وَّاَحَلُّوْا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ﴾ (۱۳ جزء د ابراهيم د سورت (۲۸) آيت (۵) رکوع).

بالآخر الله تعالی د امن او اطمينان په ځای د مسلمانانو مجاهدينو وېره ددوی په زړونو کې واچوله، او د پراخې او پرېمانې روزۍ په ځای اوه کاله قحط يې پر دوی مسلّط کړ، چې په هغه کې د سپيو او نورو مردارو تر غوښو پورې هم دوی وخوړل، بيا د «بدر» په غزا کې د اسلامي غازيانو له لاسه پر دوی د الله تعالی عذاب ورګډ شو.

فَكُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ حَلَالًا طَيِّبًا وَاشْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ ﴿۱۱۴﴾

نو خورئ تاسې له هغو (طعامونو) چې در کړي دي تاسې ته الله حلال طیب پاکیزه او شکر وباسئ (قدر وپېژنئ) د نعمت (احسان) د الله که یئ تاسې چې خاص همده ته عبادت کوئ (او فرمان یې منئ).

تفسیر: یعني هر څوک چې د الله تعالی د عبادت مدّعي وي؛ ده لره دغه خبره وړ او لائقه ده، چې د الله تعالی د ور کړي نعمت او حلالې او طیبې روزۍ څخه متمتع شي ! او د هغه احسان قدر وکړي ! او د الله شکر گذاره بنده شي ! حلال دې حرام نه گڼي، حرام دې حلال نه شمېري !، او د نعمتونو د منتفع کېدلو په وخت کې حقیقي منعم دې نه هېروي ! بلکه په هغه او د هغه پر لېږلي شوي رسولانو باندې دې ایمان راوړي ! او د دوی د احکامو او هدایاتو په تعمیل کې دې ډېر زیار وکاږي !.

إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ ۖ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۱۵﴾

بېشکه همدا خبره ده چې حرام کړې دی (الله) پر تاسې باندې (خوراک د) مردارې، او (بهېدونکې) وینې، او د غوښې د خنزیر، او هغه (حلال کړی شوي حیوان چې اواز پورته شوی په هغې)، (د بل شي) بې له الله (د نامه) په (وخت د ذبح د) هغه یې، پس هغه څوک چې اړ (محتاج) شي (خوړلو د دې حرامو ته) حال دا چې ظالم نه وي (په بل چا) او نه تجاوز کوي (له قدره د کفافه)؛ نو بېشکه الله لوی مغفرت کوونکی ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: د دې آیت تفسیر د «البقرة» او د «الأنعام» په سورتونو او نورو ځایونو کې پخوا لیکلی شوی دی، څمونږ دې تفسیر کې دې بیا ولوست شي، دلته دا غرض دی؛ لکه چې په پخواني آیت کې اشاره وه، چې حلال دې پر خپل ځان نه حراموي ! په دغه آیت کې تنبیه ورکړی شوې ده چې حرام شیان دې هم نه حلالوي ! خلاصه یې دا ده چې یو شی حلال یا حرام مقررول د همغه لوی الله حق دی، چې د دغو گردو شیانو خالق او مالك دی، لکه چې په راتلونکو آیاتونو کې په وضاحت سره د دغه مضمون بیان شوی دی.

وَلَا تَقُولُوا لِمَا تَصِفُ أَلْسِنَتُكُمُ الْكَذِبَ هَٰذَا حَلَالٌ وَهَٰذَا حَرَامٌ لِّتَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿۱۱۶﴾ مَتَاعٌ قَلِيلٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۱۱۷﴾

او مه وایئ تاسې له وجې د بیانولو د ژبو ستاسې دروغو لره (داسې) چې دا حلال دی او دا حرام دی لپاره د دې چې جوړ کړئ له ځانه پر الله دروغ، بېشکه هغه کسان چې تړي پر الله بهتان؛ نه به مومي خلاصی (له عذابه د آخرت)، (دوی لره) نفعه ده لږه، او شته دوی ته عذاب دردناك.

تفسیر: یعنې بې له کوم شرعي مستنده د کوم شي په متعلّق خوله سپړدل او داسې ویل چې حلال دی یا حرام ډېر سخت جسارت او کذب او افتراء ده، حلال یا حرام خو همغه شیان کېدی شي چې هغه ته پاك الله حلال یا حرام فرمایلي وي، که کوم سړی محض پخپلې رایې سره کوم شی حلال یا حرام وټاکي (مقرر کړي)، او د هغه نسبت الله تعالی ته

وکړي، لکه چې د مکې معظمې مشرکانو کولو، او د هغه ذکر د «الأنعام» په سورت کې څمونږ په دې مبارک تفسير کې پخوا له دې نه تېر شو، نو هغوی في الحقيقت پر الله تعالی بهتان تړلی دی.

مونږ مسلمانانو ته هدايت راکړی شوی دی چې ښايي هيڅکله داسې رويه ځان ته اختيار نه کړو، او هر هغه شی چې الله تعالی حلال کړی وي؛ حلال يې وبولو، او هر هغه شی يې چې حرام کړی؛ حرام يې وګڼو، او بې له شرعي مأخذه پخپل سر د حل يا حرمت احکام ونه لګوو.

وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِن قَبْلُ ۖ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿١١٨﴾

او پر هغو کسانو چې يهودان شوي دي، حرام کړي دي مونږ هغه څيزونه چې بيان کړي وو مونږ پر تا باندې پخوا له دې نه، او نه وو ظلم کړی مونږ پر دوی (په دې تحريم سره) وليکن وو دوی چې په ځانونو خپلو به يې ظلم کولو (په علمي عصيان سره).

تفسير: د دغه بيان د «الأنعام» د سورت د (۸ جزء په (۱۴۶) آيت (۱۸) رکوع کې د ﴿وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ ۖ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُومَهُمَا﴾ الآية ـ آيت په تفسير کې تېر شوی دی، هلته دې بيا وکتل شي !، دلته دا مقصد دی: هر هغه شی چې الله تعالی ګردو ته يا کوم خاص قوم لپاره دائمًا تل ترتله، يا تر يوه معينه وخته پورې حرام کړی وي؛ هغه عين حکمت او صواب دی، هيڅ يو انسان د دغه حق نه لري، چې په هغه کې تصرّف وکړي، او حرام حلال يا حلال حرام وګرځوي.

ثُمَّ إِنَّ رَبَّكَ لِلَّذِينَ عَمِلُوا السُّوءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابُوا مِن بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا إِنَّ رَبَّكَ مِن بَعْدِهَا لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٩﴾

بيا بېشکه رب ستا (چې دی ای محمده !) هغو کسانو ته چې يې کړي دي بدي (ګناه) په جهالت (ناپوهی) سره بيا توبه وباسي وروسته له کولو د هغه (بد عمل)، او نېک کړي عمل خپل؛ بېشکه رب ستا وروسته له دغې توبې څخه خامخا بخښنه کوونکی دی، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: مثلاً حرام يې حلال يا حلال يې حرام وګڼل، په «ناداني سره» يې څکه وفرمايل؛ هر څوک چې د الله تعالی له احکامو څخه غاړه غړوي، اګر که يې عملاً او په قصد سره هم وکړي؛ هغه په حقيقت کې د هغه ناداني او بې عقلي ده، چې له خپله ځانه په لوی لاس جاهل جوړوي، او کوي يې، که عاصي لږ څه له عقله کار واخلي، او د ګناه بدو نتايجو ته وګوري، او تصوّر يې وکړي؛ نو له سره به د معصيت په لوري اقدام ونه کړي، د جزء (۴) «النساء» د سورت په (۳) رکوع کې (۱۷) آيت کې هغه تعليقات چې پر ﴿إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوءَ بِجَهَالَةٍ﴾ باندې ليکلی شوي دي؛ ښايي چې هغه دې بيا يو ځلې دلته هم ولوستل شي !.

﴿ثُمَّ تَابُوا﴾ الآية ـ يعني له کفريّاتو څخه له توبې ايستلو او په اخلاص سره په مسلمانېدو او په مستقبل کې د خپل اعمال او افعال په درست کولو سره الله تعالی د توبې کوونکو ګرد تېر ګناهونه بخښي، اګر که ډېرې سختې او غټې ګناوې هم وي.

إِنَّ إِبْرَاهِيمَ كَانَ أُمَّةً قَانِتًا لِّلَّهِ حَنِيفًا وَلَمْ يَكُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٢٠﴾

بېشکه چې ابراهيم وو (اصلي او اساسي) پېشوا فرمان منونکی خاص الله لره حنيف (کلک په حق دين باندې)، او نه وو دی له مشرکانو (لکه چې قريش وايي).

تفسير: دلته الله تعالى جلّ وعلا د عربو د مشركينو د شركيّاتو په ترديد كې د إمام الموحّدين أبو الأنبياء ابراهيم خليل الله «عليه و على ذُريّته ونبيّنا الصلاة والسلام» طور او طريقه را په يادوي، ځكه چې د عربو خلق د ده له ذريې او ځوځات (نسل) څخه وو، او خپل ځانونه يې پر ابراهيمي دين باندې سم او برابر ګڼل، حال دا چې دوى د ابراهيمي دين سره له لرې هم څه علاقه او نسبت نه درلوده، نو دوى ته دا ورښيي چې ابراهيم عليه السلام د موحّدينو امام، د ګردو نېكيو معلم، د ټولې دنيا په مقابل كې يواځې پخپل سر د يوه عظيمه امّت په برابر ولاړ وو، او د دوى په مبارك ذات كې پاك الله هغه ګرد محاسن او كمالات ورجمع كړي وو، چې په يو لوى مجمع كې په متفرّق ډول سره موندلى كيږي.

ليس على الله بمستنكر _ أن يجمع العالم في واحد.

عجب نه دى له الله نه چې قادر دى په هر څيز

چې دى ټول پخپل قدرت كړي ګرد عالَم په يوه سړي كې.

ابراهيم عليه السلام د الله تعالى داسې كامل او مطيع او فرمان منونكى بنده وو، چې له ګردو سره يې اړيكې شكولې، او يواځې له الله تعالى سره يې نښلولې، او ډېر خاص مخلص مسلمان وو، ممكن نه وو چې ده كوم څيز بې د الله تعالى له حكمه محض له خپل لوري حلال يا حرام درولي وى، نو دى پخپله (معاذ الله) څرنګه د شرك ارتكاب كولى شي، ده د مشركينو په كلي او جماعت كې وسېدل هم نه خوښول.

نو اوس هغه كسانو ته چې دوى خپل ځانونه «حنيف» بولي، او داسې ادعا كوي چې: مونږ پر ابراهيمي دين يو؛ شرم او ننګ پكار دى، چې څرنګه پر الله تعالى بُهتان تړي؟ آيا د حلالو حرام ګڼل، يا د حرامو حلال درول او د شرك په حمايت كې له انبياوو سره جنګېدل د يو «حنيف» او ابراهيمي سړي له شان سره مناسبت لري؟.

په ياد يې ولرئ چې د حلالو او حرامو په بيان كې او د دين په اصولو كې ـ اصل خو هغه ابراهيمي ملت دى چې د همغه ملّت د اقامت او اشاعت اوسط او تفصيل لپاره محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف راوړى دى، كه غواړئ چې پر اصلي دين د ابراهيم عليه السلام تګ وكړئ؛ نو محمدي طريقه ځان ته غوره كړئ (على صاحبها أفضل الصلاة وأتم التسليم).

شَاكِرًا لِّأَنْعُمِهِ ۚ اجْتَبَاهُ وَهَدَاهُ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿١٢١﴾

(وو ابراهيم قدردان) شكر كوونكى د نعمتونو (احسانونو) د الله، غوره كړى وو (الله) دغه (ابراهيم لره په نبوّت سره)، او برابر كړى وو (الله) دغه (ابراهيم) سمې لارې ته.

تفسير: يعني ابراهيم عليه السلام د الله تعالى شكرګزاره بنده وو، تاسې سخت ناشكره او د نعمت كفران كوونكي يئ، لكه چې د ﴿وَضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا قَرْيَةً كَانَتْ آمِنَةً مُّطْمَئِنَّةً﴾ الآيات ـ په تفسير كې كښلي شوي دي، نو تاسې څرنګه د ابراهيم عليه السلام په دين او ملّت او لاره كې يئ؟ چې حق پرېږدئ او باطل خوښوئ له توحيده مخ اړوئ، او شرك او كفر پسې ځغلئ، حال دا چې ابراهيم عليه السلام د كامل توحيد او تسليم او رضاء پر سمه لاره روان وو، او الله تعالى ده ته ډېره سمه صافه لاره ورښوولې وه، او دى يې پرې روان كړى وو.

وَآتَيْنَاهُ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ۖ وَإِنَّهُ فِي الْآخِرَةِ لَمِنَ الصَّالِحِينَ ﴿١٢٢﴾

او وركړې وه مونږ دغه ته (يعني ابراهيم ته) په دغه دنيا كې ښه حالت، او بېشكه دغه (ابراهيم) په آخرت كې هم خامخا له صالحانو (د لويو درجاتو د خاوندانو) څخه دى.

تفسیر: حسنه یعنې نبوّت، پراخه روزي، اولاد، وجاهت، (یا جمیل ذکر یا نېک اولاد یا نبوّت د محمد صلی الله علیه وسلم یا) عمومي مقبولیت چې ګرد ادیان بالاتفاق د ده تعظیم کوي، او هره فرقه همدا غواړي چې خپله سلسله ابراهیم علیه السلام سره ولګوي.

ثُمَّ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ أَنِ اتَّبِعْ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿١٢٣﴾

بیا وحي (حکم) وکړ مونږ تا ته (ای محمده !) چې متابعت وکړه (په توحید کې) د دین د ابراهیم چې حنیف (کلکك په حق دین) وو، او نه وو دی له مشرکانو.

تفسیر: د دې بیان د «الأنعام» په سورت کې د ﴿دِينًا قِيَمًا مِّلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ﴾ آیت لاندې ځمونږ دې تفسیر کې تېر شو، هلته دې بیا ولوست شي !، مقصد دا دی چې په حل او حرمت کې او دیني خبرو کې ابراهیمي ملت او دین اصل دی، په منځ کې یهودو او نصاراوو ته د هغوی د حالاتو په مناسبت مخصوص احکام ورکړی شوي دي، بالآخر محمد صلی الله علیه وسلم یې مبعوث کړ، څو هغه اصلي ابراهیمي دین بیا له سره ژوندی او روښانه کړي، چې له غفلته او تحریفه او بېځایه تصرّفاتو څخه بیخي ضایع شوی وو، او د شرک ګرد رګونه پرې کړي.

په حدیث کې راغلي دي: «بعثت بالحنیفیّة السّمحة» د دې داسې پوره شرح او تفصیل شاه ولي الله (رحمه الله تعالی) په «حجّة الله البالغة» کې فرمایلی دی، چې د لوستلو وړ دی.

إِنَّمَا جُعِلَ السَّبْتُ عَلَى الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ ۚ وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿١٢٤﴾

بېشکه همدا خبره ده چې مقرر کړی شوی دی (تعظیم د ورځې د) خالي پر هغو کسانو چې اختلاف یې کړی وو په کې، او بېشکه چې رب ستا خامخا حکم به وکړي په منځ د دوی کې په ورځ د قیامت کې په هغه څیز کې چې وو دوی چې په هغه کې به یې اختلاف کولو (چې هغه ورځ ده د عبادت).

تفسیر: یعنې په اصلي ابراهیمي ملّت کې دخالي (شنبې) د ورځې حکم نه وو، چې پر مونږ محمدي امّت باندې هم نه دی، هو ! په منځ کې یهودانو د خپل نبي موسی علیه السلام له ارشاده سره اختلاف وکړ، نو کله چې دوی دغه د خالي ورځ ځانته غوره کړه؛ نو حکم وشو چې په ښه شان سره یې تعظیم وکړئ !او په دغه ورځ کې دې د ماهیانو ښکار ونه کړ شي ! ځینو یهودانو دغه حکم قبول کړ، او ځینو هغه ونه منلو، چې هغه نامنونکي په دنیا کې بیزوګان او خنزیران شول، او د دوی په نسبت کومه فیصله چې په آخرت کې کیږي؛ هغه بېله ده، په همدغه څه انحصار نشته، هلته به نور ګرد اختلافات او جګړې هم سره فیصله کیږي.

ادْعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ ۖ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ ۚ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ ۖ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿١٢٥﴾

بلنه کوه (ای محمده ! خلقو ته) لارې د رب خپل ته (چې توحید او اسلام دی) په حکمت سره او په موعظه (پند) نېک سره په ښه ډول، او مباحثه کوه له دوی سره په هغې (طریقې سره) چې هغه ډېره ښه وي !، بېشکه چې رب ستا ښه عالم دی په هغه چا چې ګمراه شوی دی له لارې د الله څخه، او دی ښه عالم دی په لاره موندونکو (دین ته او پر تا تش تبلیغ دی).

**تفسیر:** په پاس آیتونو کې یې مخاطبینو ته دا ورښکاره کړه، چې دغه رسول الله د اصلي ابراهیمي ملّت او دین سره راغلی دی، که تاسې د بري او کامیابۍ غوښتونکي یئ، او د «حنیفیت» په دعوی کې رښتین یئ؛ نو پر دغه سمې، صافې لارې لاړ شئ ! په ﴿ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ﴾ الآیة ـ کې تر آخره پورې پخپله محمد صلی الله علیه وسلم ته تعلیم ورکول کیږي، چې ښایي خلق په څه ډول په سمې لارې باندې راولي؟ او د هغه درې طریقې یې راښودلې دي: (۱): حکمت، (۲) حسنه موعظه، (۳): جدال بالتي هي أحسن.

(۱): له «حکمت» څخه مراد دا دی، چې د نهایتي پخې خبرې، محکمې اترې، جازمه مضامین، قاطعه براهین، مضبوط دلائل، او معقول عوامل په قوّت او رڼا کې هغوی ته لار ښوونه وشي، چې د هغو په اورېدلو او لیدلو او پوهېدلو سره فهم او ادراک او علمي ذوق لرونکې طبقه غاړه کېښودی شي، او د دنیا خیالي فلسفې د ده په مقابل کې پرې او مړې ولوېږي، او هیڅ قسم علمي او دماغي ترقیات د الله تعالی د وحي له بیان کړیو حقائقو یو بخرکی هم تبدیل ونه کړی شي.

(۲): «حسنه موعظه» له هسې موقرو معتبرو او مؤثرو او رقّت پیدا کوونکو پندونو څخه عبارت دی؛ چې د نرم خویۍ او زړه سوی له روحه ډک وي، له اخلاص، همدردۍ، شفقت او ښو اخلاقو سره په ښه صورت او معتدل اسلوب سره وي.

(۳): «جدال بالتي هي أحسن»، یعنې که کومه موقع د مباحثې دروړاندې شي؛ نو په ډېره ښه طریقه، تهذیب غوره والي، حق پېژندلو، عدل او انصاف سره مباحثه وکړئ !، او پر خپل مقابل حریف الزام واړوئ، او په ښه اسلوب او پیرایه سره یې سمې لارې ته درواړوئ، او ښایي چې خامخا زړه خوږوونکې او ربړوونکې خبرې ونه کړئ !، چې په هغه سره قضیه اوږدېږي، او معامله طول ته رسیږي، ښایي چې بالذات دې مقصود تفهیم او د حق احقاق وي، ځکه چې له ځیروالي، خشونت، بد اخلاقۍ، خبرو غځولو، ضد، او عناد څخه هیڅ یوه ښه نتیجه په لاس نه ورځي.

﴿إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعۡلَمُ﴾ الآیة ـ یعنې د دعوت او تبلیغ په لاره کې تا ته ښایي چې د الله تعالی په ورښولې لارې باندې لاړ شئ، او تا ته نه ښایي چې په دغه فکر او چرت (خیال) کې ولوېږې، چې څوک یې مني؟ او څوک یې نه مني؟ نتیجه پاک الله ته وسپاره ! همغه د ده په لاره تلونکو او نه تلونکو وګړو له حالاتو څخه خبردار دی، او له هر چا سره به له هغه سره مناسبه معامله کوي.

وَإِنۡ عَاقَبۡتُمۡ فَعَاقِبُواْ بِمِثۡلِ مَا عُوقِبۡتُم بِهِۦۖ وَلَئِن صَبَرۡتُمۡ لَهُوَ خَيۡرٞ لِّلصَّٰبِرِينَ ﴿١٢٦﴾

او که عذابوئ تاسې (څوک)؛ نو عذاب ورکوئ په شان د هغه عذاب سره چې عذاب کړی شوي یئ تاسې په هغه سره، او خامخا قسم دی که صبر وکړ تاسې؛ نو خامخا دغه (صبر) خیر (غوره) دی (له انتقامه) صابرانو ته.

**تفسیر:** یعنې د تبلیغ او دعوت په لاره کې که تاته ډېره سختي او تکالیف در ورسولي شو؛ نو د قُدرت او قوّت حاصلولو په وخت کې ته اجازه لرې، چې سم برابر له هغوی سره معامله وکړې، او په مساوي ډول ترې بدل واخلې، لیکن د صبر مقام له دې نه لوړ او اعلی دی، که صبر وکړې نو د هغه نتیجه ستا په حق او د لیدونکي او هم د همغو متجاوزینو او تیري کوونکو په حق کې ښه او بهتره ده.

وَاصْبِرْ وَمَا صَبْرُكَ إِلَّا بِاللَّهِ وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿۱۲۷﴾

او صبر کوه ! او نه دی صبر ستا مګر په (توفیق) د الله سره، او مه خپه کېږه پر دغو کفّارو (چې ولې نه مسلمانیږي)، او مه کېږه په زړه تنګی کې له هغو مکرونو څخه چې دوی مکرونه کوي (له تا سره).

**تفسیر:** یعنې پر مظالمو او شدائدو صبر کول آسان کار نه دی، که الله تعالی چاته توفیق ور په برخه کړي؛ نو صبر او تحمّل یې هم په برخه کیږي، او کولی شي چې ربړ (تکلیف) او ظلم وګالي (برداشت کړي)، او آه ونه کاږي !.

إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوْا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴿۱۲۸﴾

بېشکه الله ملګری دی (په عون او نصرت سره) له هغو کسانو سره چې پرهېزګاري کوي (له کفر او معاصیو او ویریږي له الله)، او له هغو کسانو سره چې دوی نیکي کوونکي دي.

**تفسیر:** یعنې انسان هومره چې له الله تعالی څخه وویریږي، او تقوی او پرهېزګاري او نیکي اختیار کړي؛ هغومره د الله تعالی امداد او اعانت ورسره وي، نو داسې متقیانو ته د کفّارو له مکرونو او فریبونو څخه زړه تنګي کېدل یا غمجنوالی نه دی پکار، ځکه چې الله تعالی دغه عاجزان او ضعیفان هم له متقیانو او محسنانو سره پخپل فضل او کرم او مرحمت محشور فرمایي.

تمّت سورة النحل بعونه وتوفیقه، ولله الحمد.



# سُوۡرَةُ بَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ

«د (بني اسرائيل» سورت مكّي دى، پرته له (٢٦، ٣٢، ٣٣، ٥٧، او له ٧٣ آيتونو څخه تر ٨٠ آيته پورې چې مدني دي، (١١١) آيتونه، (١٢) ركوع لري، وروسته د (القصص) له سورت څخه نازل شوى دى، په تلاوت كې (١٧) او په نزول كې (٥٠) سورت دى».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

سُبۡحٰنَ الَّذِیۡۤ اَسۡرٰی بِعَبۡدِهٖ لَیۡلًا مِّنَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ اِلَی الۡمَسۡجِدِ الۡاَقۡصَا الَّذِیۡ بٰرَکۡنَا حَوۡلَهٗ لِنُرِیَهٗ مِنۡ اٰیٰتِنَا ؕ اِنَّهٗ هُوَ السَّمِیۡعُ الۡبَصِیۡرُ ①

پاكي ده هغه ذات لره چې بيولى يې وو بنده خپل (محمد) په (يوه برخه د) شپې كې له (منځه يا له څنګه د) مسجد حرام څخه تر مسجد اقصى پورې هغه چې بركت اچولى دى مونږ چار چاپېر د هغه، (بيول د محمد د دې لپاره وو) چې (هلته) وښيو مونږ ده ته ځيني له دلائلو د توحيد خپل، بېشكه چې دغه (الله) هم دى دى ښه اورېدونكى (د ګردو اقوالو) ښه ليدونكى.

تفسير: يعني الله تعالى له هر نوعه نقص او له هر قسمه قصور او له هر راز ضعف او عجز څخه پاك دى، هره هغه خبره چې څمونږ په خيال كې بې انتهاء عجيبه معلوميږي، او څمونږ ناقص عقول هغه پيچيدګي مستبعده ګڼي، د الله تعالى د قُدرت او مشيت مقابله كې هغه هيڅ مشكل نه دى.

﴿اَسۡرٰی بِعَبۡدِهٖ لَیۡلًا﴾ الآية - يعني يوائې د شپې په يوې محدودې برخې كې خپل ډېر مخصوص او خورا (ډېر) مقرب بنده محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم يې د مكې معظمې له حرمه تر بيت المقدس پورې بوتلو.

د دغه سفر غرض څه وو؟ د هغه په لوري وروسته له دې نه په ﴿لِنُرِیَهٗ مِنۡ اٰیٰتِنَا﴾ كې اشاره فرمايلې ده: حاصل يې دا دى چې پخپله همدغه سفر كې له بيت المقدس څخه وړاندې بل چېرې يې بوتلو، او د خپل د قدرت عظيم الشأن نشان او ډېر له حكمته د انتظاماتو عجيبې او غريبې نمونې ورښوول يې منظور وو، د «النجم» په سورت كې د دغو آيتونو څخه ذكر شوى دى، چې له هغو څخه ظاهريږي، چې څمونږ د رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلّم تر «سدرة المنتهى» پورې تشريف وړى وو، او نهايت عظيم الشأن آيات يې مشاهده فرمايلي وو: ﴿وَلَقَدۡ رَاٰهُ نَزۡلَةً اُخۡرٰی * عِنۡدَ سِدۡرَةِ الۡمُنۡتَهٰی * عِنۡدَهَا جَنَّةُ الۡمَاۡوٰی * اِذۡ یَغۡشَی السِّدۡرَةَ مَا یَغۡشٰی * مَا زَاغَ الۡبَصَرُ وَمَا طَغٰی * لَقَدۡ رَاٰی مِنۡ اٰیٰتِ رَبِّهِ الۡکُبۡرٰی﴾ (٢٧ جزء د النجم سورت (١٣ ـ ١٨) آيت پورې، (١) ركوع).

د علماوو په اصطلاح: له مكې څخه تر بيت المقدس پورې سفر ته (إسراء) او له هغه ځايه تر «سدرة المنتهى» پورې سياحت ته «معراج» وايي، او ډېر ځلې د دغو دواړو سفرونو مجموعه په همدغه يوه لفظ د (إسراء) يا (معراج) سره تعبير كيږي.

د أسلافو او أخلافو د جمهورو عقيده دا ده چې: څمونږ پاك رسول الله محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم په ويښه (بجسده الشريف) (معراج) ته بيولى شوى دى.

باقي د «رؤيا» لفظ چې په قرآن كريم كې په ﴿وَمَا جَعَلْنَا الرُّءْيَا الَّتِيٓ أَرَيْنٰكَ﴾ آيت كې راغلى دى؛ د هغه په متعلّق ابن عبّاس رضي الله تعالى عنهما فرمايلي دي: «رؤيا عين أريها الرسول صلى الله عليه وسلم»، مفسّرينو د عربو له كلامونو څخه د دې شواهد وړاندې كړي دي، چې د «رؤيا» د لفظ اطلاق كله ناكله د مطلق «رؤيت: ليدل» په معنى استعمالېږي، لهذا كه له هغه څخه مراد همدغه د «اسراء» واقعه وي؛ نو د مطلق نظاره په معنى اخيسته كېږي، چې په ظاهري ستر ګو سره شوى دى، څو د نصوصو له ظواهرو او د جمهور الأمت له عقيدې څخه مخالفت ونشي، هو ! د (شريک) نامي راوي په روايت كې ځينې داسې الفاظ راغلي دي، چې د هغو له مخې د «اسراء» وقوع د نَوْم «خوب» په حالت كې معلومېږي، مګر محدثين پر دغه خبره ګرد سره متفق دي، چې د (شريک) حافظه خرابه ده، نو ځكه د ډېرو لويو لويو حفّاظو د احاديثو په مقابل كې د هغه روايت د استناد قابل نشي كېدى.

حافظ ابن حجر «رحمه الله» د (فتح الباري) په اواخرو كې د (شريک) د حديث اغلاط شميرلي دي، او دا يې ښوولي ده چې د ده د روايت مطلب دى داسې واخيستل شي، چې څو د عمومي احاديثو څخه مخالف نشي، مونږ دا قسم تفاصيل دلته نشو درجولى.

د (صحيح مسلم) په شرح كې دغه مباحث په پوره شرح او بسط سره درج كړى شوي دي، دلته تش دومره ښوولى كيږي، چې راجح مذهب همدا دى، چې د (معراج) او د (اسراء) واقعه دويښتوب په حالت كې (بجسده الشريف) واقع شوېده، هو ! كه پخوا له دې نه يا وروسته همداسې واقعات په خوب كې همدوى ته ورښوولي شوي وي؛ نو له هغه څخه انكار نه دى پكار.

﴿الَّذِي بٰرَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ اٰيٰتِنَا﴾ يعني په هغه ملک كې چې «مسجد اقصى» او بيت المقدس واقع دى؛ الله تعالى ډېر ظاهري او باطني بركات اېښي دي، له مادي حيثيته د چينو، نهرونو، غلو، دانو، مېوو، او نورو افراطه، او كه د روحاني په اعتبار وكوتل شي؛ نو هغه د ډېرو انبياوو او رسولانو د بعثت ځاى وو، ښايي د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د بيولو څخه هغه ځاى ته دغه اشاره هم وي، چې هغه ګرد كمالات چې بني اسرائيلو په انبياوو او نورو تقسيم شوي وو؛ د ده په مقدّس ذات كې سره ټول شوي دي، پر هغه ټولو نعمتونو چې پر بني اسرائيلو مبذول شوي وو؛ بني اسماعيل قبضه كوونكي دي، د كعبې شريفې او د بيت المقدس د دواړو د انوارو او د بركاتو حامل همدغه يو محمدي امت كېدونكى دى، په احاديثو كې راغلي دي، چې رسول الله مبارک په بيت المقدس كې د ګردو انبياوو امامت وفرمايه، ګواكې د انبياوو هغه د سيادت او امامت منصب چې محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وركړى شوى وو؛ د هغه يوه حسّي نمونه دوى ته او نورو مقرّبينو ته دلته وروښودل شوه.

وَاٰتَيْنَا مُوسَى الْكِتٰبَ وَجَعَلْنٰهُ هُدًى لِّبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ أَلَّا تَتَّخِذُوا مِن دُونِي وَكِيلًا ۝٢

او وركړى وو مونږ موسى ته كتاب (تورات)، او ګرځولى وو مونږ هغه (كتاب) هدايت لپاره د بني اسرائيلو چې مه نيسئ تاسې غير له ما څخه هيڅ وكيل (دوست متولّي جوړوونكى د كارونو خپلو).

تفسير: د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د فضل او شرف د بيان فرمايلو څخه وروسته د موسى عليه السلام د ذكر په طرف يې كلام منتقل كړ، كله چې د «اسراء» په ذيل كې تر «مسجد الأقصى» او «بيت المقدس» پورې د تللو ذكر وو، وروسته له هغه پر «مسجد اقصى» او د هغه پر قديمي متوليانو بني اسرائيلو كومې مختلفې دورې چې تېرې شوې وې؛ هغه د مسلمانانو د عبرت او پخپله د بني اسرائيلو د نصيحت لپاره بيانولى شي، او دا آيت د هغه تمهيد دى.

د اسراء، په واقعه کښ اشاره ده چې د حجازي نبي امّت يواځې د همدې امانت مالك ګرځېدونكى دى، چې د (شام) په ځمکو کښ په وديعت اينبى شوى وو، په دغو آياتونو کښ بني اسرائيلو ته تنبيه ورکاوه شي، چې که دوى د خپل خيريت غوښتونکي وي؛ نو اوس دې د همدې عربي رسول الله صلى الله عليه وسلم متابعت وکړي، نو الله تعالى به هم د دوى پر حال لطف او مهرباني وفرمايي، که نه د پخوا په شان به بيا دوى ته د دوى د شرارتونو سزا ورکړل کيږي، او د «مسجد اقصى» له توليته به هم محروموه شي.

﴿أَلَّا تَتَّخِذُوا مِن دُونِي وَكِيلًا﴾ يعنې په تورات کښ داسې هدايت ورکړى شوى وو، چې پر خالص توحيد قائم اوسيږئ ! او د الله تعالى څخه ماسوا بل هيڅوك خپل وكيل او كار جوړوونكى مه ګڼئ ! او تل پر همغه الله باندې توکل او اعتماد وکړئ !.

ذُرِّيَّةَ مَنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ ۚ إِنَّهُ كَانَ عَبْدًا شَكُورًا ③

اى اولاده د هغه چا چې سور (او بار) کړې وو مونږ سره له نوحه (په بېړۍ کښ)، بېشکه چې نوح وو بنده ډېر شکر ايستونکى (په هر حال کښ، نو ښايي چې تاسې هم شاکر اوسئ !).

**تفسير:** يعنې تاسې د هغو کسانو اولاده يئ، چې له نوح عليه السلام سره پر بېړۍ سپاره (سواره) شوي وو، او د الله تعالى له عذابه يې نجات موندلى وو، هغه احسان چې مونږ ستاسې پر لويانو کړى دى مه يې هېروئ، وګورئ نوح عليه السلام چې تاسې د هغه له اولادې څخه يئ؛ څرنګه احسان پېژندونکى او شکر ايستونکى بنده وو، نو تاسې لره هم ښايي چې د هغه متابعت وکړئ !.

وَقَضَيْنَا إِلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ④

او قطعي حکم لېږلى وو مونږ بني اسرائيلو ته په كتاب (تورات کښ داسې چې) خامخا به فساد وکړئ تاسې هرومرو په ځمکه (د شام) کښ دوه ځلې او خامخا سر کښي به وکړئ تاسې هرومرو په سر کښي ډېره لويه سره.

**تفسير:** په تورات يا په بل اسماني کتاب کښ دغه پخوا ويل شوي وو؛ چې دغه قوم بني اسرائيل دوه ځلې به په مملکت کښ سخته خرابي وکړي، او د ظلم او تکبّر طريقه به غوره کوي، او د سختيو سر کښيو او تمردو مظاهره به کوي، لکه چې هم داسې هم وشو، او هر ځلې د الله تعالى له جانبه د دردناکو سزاوو خوند ورڅکاوه کېده، چې د هغه ذکر داسې فرمايي:

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ أُولَاهُمَا بَعَثْنَا عَلَيْكُمْ عِبَادًا لَّنَا أُولِي بَأْسٍ شَدِيدٍ فَجَاسُوا خِلَالَ الدِّيَارِ ۚ وَكَانَ وَعْدًا مَّفْعُولًا ⑤

نو کله چې راغله وعده د اول انتقام (د هغو دواړو فسادونو څخه)؛ نو مسلط کړل مونږ پر تاسې بندګان ځمونږ (هغه چې ستاسې د سزا لپاره مو مسلّط کړي وو) چې خاوندان د جنګ سخت وو، نو ګرد ګرځېدل دوى (د وژلو او تالا کولو لپاره) په منځ د ښارونو (ستاسې)، او وو (دا کار يوه) وعده پوره کېدونکې.

**تفسير:** يعنې په کليو او ښارونو کښ د کورونو په منځ کښ ننوتل، او ډېر خلق يې ووژل، او وينې يې وبهولې، او ګرد يې سره لوټ او تالا کړل، په دغه شانې هغه وعده چې الله تعالى د دوى د سزا ورکولو په نسبت ورکړې وه؛ پوره شوه.

ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِمْ وَأَمْدَدْنَٰكُم بِأَمْوَٰلٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَٰكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ۝٦ إِنْ أَحْسَنتُمْ
أَحْسَنتُمْ لِأَنفُسِكُمْ ۖ وَإِنْ أَسَأْتُمْ فَلَهَا ۚ فَإِذَا جَآءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُـۥٓـُٔوا۟ وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا۟
الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا۟ مَا عَلَوْا۟ تَتْبِيرًا ۝٧

بیا بېرته درکړه مونږ تاسې ته غلبه (دولت چې غالب شئ) پر دوی، او مرسته (مدد) مو وکړه له تاسې سره په مالونو سره، او په ځامنو سره، او وګرځولی مونږ تاسې زیات له جهته د ملاتړه. که نیکي وکړئ تاسې نو نیکي به کوئ تاسې لپاره د ځانونو خپلو، او که بدي کوئ تاسې نو (زیان یې) پر نفسونو ستاسی دی، نو کله چې راغله وعده د وروستي (انتقام، فساد، نو بیا مې خپل بندګان مسلّط کړ پر تاسې) لپاره د دې چې دوی بد کړي مخونه ستاسی (یعنې د غم آثار په کې ښکاره کړي)، او لپاره د دې چې ننوځي مسجد د بیت المقدس ته لکه چې ننوتلي وو په هغه کې اول ځلي، او لپاره د دې چې هلاک (خراب) کړي هر هغه (ځای او شی) چې دوی غالب شوي وو په ډېر سخت خرابولو او هلاکولو سره.

تفسیر: یعنې کله چې تاسې ځما په طرف رجوع وکړه، او د توبې او انابت طریقه مو غوره کړه؛ مونږ بیا تاسې ته پر دښمنانو بری او کامیابي درکړه، له نېکی او بدۍ څخه هر څه نفع او نقصان چې رسیږي؛ همدا تاسو ته دررسیږي.

د وروستي فساد لامله یو ځل بیا په تاسې ځمونږ بندګان مسلّط شول، چې په ډېرو وژلو او وهلو سره یې ستاسې رنګونه خړ او مخونه خراب کړل، او په مسجد اقصی بیت المقدس کې ننوتل، او د پخوا په شان لوی شورماشور او بلوه یې ونښلوله، صورتونه، هیاکل او نور شیان یې خراب او تباه کړل، او په دې شان د بني اسرائیلو قوت د تل لپاره خاتمه وموندله.

عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَن يَرْحَمَكُمْ ۚ وَإِنْ عُدتُّمْ عُدْنَا ۘ وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَٰفِرِينَ حَصِيرًا ۝٨

نژدې دی رب ستاسې چې رحم وکړي پر تاسې (که توبه مو وکړه)، او که بېرته وګرځېدی تاسې (فساد ته)؛ نو مونږ به هم راوګرځو (عقوبت ستاسې ته)، او ګرځولی دی مونږ دوزخ لپاره د کافرانو بندي خانه.

تفسیر: شاه صاحب لیکي: «په تورات کې ویلي شوي وو، چې بني اسرائیل به دوه ځلې شرارت وکړي، د هغه په جزاء به دښمنان د دوی پر ملک غالبیږي، همداسې وشوه، یو ځلې «جالوت» غالب شو، بیا الله تعالی هغه د داود علیه السلام په لاس هلاک کړ، بیا بني اسرائیلو ته د سُلیمان علیه السلام په سلطنت لا زیات قوت ورکړی شو، دویم ځلې د پارسیانو څخه بخت نصر غالب شو، وروسته له دې نه د یهودانو سلطنت بیا قوّت ونه موند، اوس فرمایي چې: الله تعالی په مهرباني راغلی دی، که تاسې د محمد صلی الله علیه وسلم تابع شئ؛ نو هم هغه سلطنت او غلبه به بیا در په برخه شي، او که تاسې بیا شرارت وکړئ؛ نو مونږ به بیا درسره همغسې وکړو، یعنې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانان به پر تاسې غالبان کړو، او په آخرت کې د دوزخ اور تیار دی.

ځینې علماء له ړومبنۍ وعدې څخه د بخت نصر حمله اخیستې ده، چې (۱۲۰۸) کاله پخوا له هجرته وه، او له دویمې وعدې څخه «طیطوس رومي» مرادوي، چې (۵۵۱) کاله پخوا تر هجرته واقع شوې ده، ځکه چې په دغو دواړو حملو کې یهودان په پوره ډول سره تباه او برباد شول، او «مقدس هیکل» یې له لاسه وویست، والله أعلم.

إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا ﴿٩﴾

بېشکه دغه قرآن هدایت کوي (ښيي نېکانو ته) هغه (لاره) چې هغه ډېره برابره، سمه، صافه او ښه ده، او زېری ورکوي مؤمنينو ته، هغه (مؤمنان) چې کوي دوی ښه (عملونه) د دې خبری چې شته دوی ته اجر ډېر لوی.

تفسیر: هسې خو «تورات» هم بني اسرائيلو ته لار ښوونکی وو، لکه چې پخوا يې فرمايلي دي: ﴿هُدًى لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ﴾ ليکن دغه قرآن عظيم الشأن ګردې دنيا ته له ګردو څخه زيات او ښه سمه، صافه او مضبوطه لار ښيي، او نور ګردې قويمي لارې د همدغه ﴿أَقْوَمُ﴾ لاندې مندرجې شوي دي، لهذا که نجات او بری ستاسې پکار وي؛ نو د خاتم الأنبياء محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم متابعت وکړئ! او پر دغه محمدي سمه صفا سړک باندې درومئ! او هغه کسان چې په قلب او جوارح يعني په ايمان او صالح عمل سره پر دغه سمه صافه لاره تګ کوي؛ نو قرآنکريم به په دنيا کې هغه ته طيبه حيات، او په آخرت کې د جنت عظيم الشأن بشارات اوروي، باقي هغه کسان چې له هغوی سره بيخي د آخرت څه فکر او خيال نشته، او د غفلت او غرور په نشو کې په دنيوي لذاتو او شهواتو کې ډوب تللي دي؛ او اصلا د آخرت په فکر او سودا کې نه دي؛ د هغوی د بد انجام او خراب عاقبت ذکر داسې فرمايي:

وَأَنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ أَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿١٠﴾ وَيَدْعُ الْإِنسَانُ بِالشَّرِّ دُعَاءَهُ بِالْخَيْرِ ۖ وَكَانَ الْإِنسَانُ عَجُولًا ﴿١١﴾

او بېشکه هغه کسان چې ايمان نه راوړي په آخرت باندې؛ تيار کړی دی مونږ دوی ته عذاب دردناک. او دعاء کوي (غواړي) انسان شر (پر خپل ځان او په اولاد) (د زړه تنګی په وخت کې) په (مثل د) غوښتلو د ده د خير، او دی انسان تلوار کوونکی (په غوښتلو د خير او د شر د دواړو).

تفسير: يعني قرآنکريم خلق د ډېرو ښو ښېګڼو (فائدو) په طرف بولي، د اجر کبير بشارات اوروي، او د بدۍ د مهلکو نتائجو څخه انسانان خبروي، ليکن د نادان انسان حال دا دی چې هغه سره د دغو ګردو خبرو د اورېدلو بيا هم د خپل ځان لپاره خرابي او بدي په همغه اشتياق او الحاح سره غواړي؛ لکه چې کومه نيکي خپل ځان لپاره غواړي، دوی له انجام څخه خپلې سترګې پټوي، او په ډېرې تېزۍ او تلوار سره د بديو او ګناهونو په طرف ورځغلي، او منډې ورپسې وهي، بلکه ځينې بدبختان په صافو الفاظو سره پخپلو ژبو سره داسې وايي: ﴿وَإِذْ قَالُوا اللَّهُمَّ إِن كَانَ هَٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِندِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيمٍ﴾

«ای الله! که دغه نبي پخپلې دعوی کې صادق او رښتين وي؛ نو پر مونږ باندې له اسمانه کاڼي راووروه! يا بل کوم سخت عذاب راباندې نازل کړه!»، ځينې بېوقوفان له ډېره قهره او غضبه رېږدي (رپيږي)، او شين او سور ګرځي، او په دغه حالت کې خپل ځان يا خپل اولاد يا نورو ته بې له پوهېدلو او سنجولو (غور کولو) ښېرا کوي.

وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ آيَتَيْنِ ۖ فَمَحَوْنَا آيَةَ اللَّيْلِ وَجَعَلْنَا آيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً لِّتَبْتَغُوا فَضْلًا مِّن رَّبِّكُمْ وَلِتَعْلَمُوا عَدَدَ السِّنِينَ وَالْحِسَابَ ۚ وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنَاهُ تَفْصِيلًا ﴿١٢﴾

او ګرځولي ده مونږ شپه او ورځ دوه دليله (د توحيد)، نو محوه کړه مونږ علامه د شپې، او وګرځوله مونږ علامه د ورځې روښانه (چې هر شی په کې ليدل کيږي)، لپاره د دې چې طلب کړئ تاسې (په رڼا د ورځې کې) فضل له رب خپل، او چې معلوم کړئ وپوهېږئ تاسې (په دغه

اختلاف د دې شپو او ورځو کې) شمار د کلونو او حساب (د اوقاتو)، او هر څيز (چې تاسې ورته اړ «مجبور» يئ) بيان کړی دی مونږ هغه په بيانولو واضحو سره.

**تفسير:** د شپې تياره، د ورځې رڼا، د دغو دواړو څخه کله د يوه لوېدل او کله د بل، بيا د شپې له مخې د مياشتې ورو ورو لوېدل، او د سپوږمۍ ورو ورو وړېدل، د سپوږمۍ تتې يخې وړانګې او د لمر تېزې او تودې پلوشې، دغه ګرد د الله قدّوس د کامله قدرت نمونې دي، چې د دوی څنې د هر يوه نظام عليحده او مستقل دی، او له هره يوه سره په زرهاوو فوائد او مصالح تړلي دي، او د دغو ګردو مجموعي نظام سره بېل دی، چې له شروع څخه تر اوسه او تر «ما شاء الله» پورې د نهايتو مضبوطو اصولو، او ټينګو قوانينو لاندې دور او حرکت کوي.

﴿فَمَحَوْنَآ اٰيَةَ الَّيْلِ﴾ يعنې د شپې نمونه تياره او ورکه ده، او د سپوږمۍ روښنايي د لمر په اعتبار سپکه روښنايي او لږ څه تياره ښکاري، لکه پخپله د سپوږمۍ جرم (چکی او ټيکلی) د کتونکي په نظر داغداره ښکاري.

﴿وَجَعَلْنَآ اٰيَةَ النَّهَارِ مُبْصِرَةً﴾ الآية ـ يعنې د ورځې په وخت کې چې د لمر په پلوشو هر شی صاف او ښکاره په نظر راځي، خلق تازه دمه بيا پر خپلو چارو کې لګيا کيږي، او د رزق او روزی په تلاش او لټولو پسې لوېږي، او په رنګارنګ کارونو کې مشغوليږي، الغرض پر هغه شيانو چې د شپې له مخې د تيارو پرده لوېدلې وي، د لمر پلوشې هغه ټول سره بې پردې کوي، او د هغو کسانو سترګې خلاصوي، چې تر اوسه په درانه خوب کې ويده او مدهوشه پراته وو، چې دغه لوري او هغه لوري ته په تګ او راتګ او کاروبار کې سره بوخت او لګيا په نظر راځي.

﴿وَكُلَّ شَيْءٍ فَصَّلْنٰهُ تَفْصِيْلًا﴾ تاسې ښه وپوهېږئ چې له ويرېدلو، او شورماشور لګولو او ژر غوښتلو څخه هيڅ يوه فائده په لاس نه درځي، الله تعالی د خير او د شر او د نور هر څيز اندازه هم داسې مقدره او مقرره کړې ده، لکه چې د شپې او د ورځې اندازې مقررې دي، چې د هيچا په ژر غوښتلو او چالاکی کولو سره نه شپه لنډيږي، او نه ورځ اوږديږي، او ګرد پخپله همغه مقرر وخت کې صبا او بېګا کيږي، د شر څخه وروسته د خير څنې پس د شر راتګ هم داسې وګڼئ ! لکه چې ورځې پسې شپه او شپې پسې ورځ راځي، او د هغه سلسله پرله پسې ده، د دنيا د ګرد خير او شر سلسله د يوې معينې ضابطې او نظام لاندې ده، چې د هغه ماتول، يا لرې کول د هيچا له واکه نه دي پوره، او نه امکان لري.

وَكُلَّ اِنْسَانٍ اَلْزَمْنٰهُ طٰٓئِرَهٗ فِيْ عُنُقِهٖ ۭ وَنُخْرِجُ لَهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ كِتٰبًا يَّلْقٰىهُ مَنْشُوْرًا ۝۱۳ اِقْرَاْ كِتٰبَكَ ۭ كَفٰى بِنَفْسِكَ الْيَوْمَ عَلَيْكَ حَسِيْبًا ۝۱۴

او هر انسان لازم کړی دی مونږ له ده سره عمل د ده (يا عمل نامه دده، يا بخت تالی ، او قسمت دده) په غاړه د ده کې، او راوبه باسو ده ته په ورځې د قيامت کې يو کتاب (ليکلی شوی) چې يو ځای به شي، وبه ويني هغه غوړېدلی. (او وبه ويلی شي ده ته): ولوله (دا) کتاب ستا (عملنامه خپله)، کافي دی همدا ځان ستا نن ورځ پر تا حساب کوونکی (د نېکيو او د بديو).

**تفسير:** يعنې د قسمت شومي او د اعمالو بدي د ده د غاړې غړوندی ګرځېدلی دی، چې له سره ترې نه بيليږي، او د قيامت په ورځ به يې هم هغه په نظر ورځي، او هر يوه انسان ته د ده اعمالنامه پخپل لاس کې ورکول کيږي، چې پخپله يې ولولي او فيصله وکړي، چې هغه کارونه چې ده پخپل ګرد عمر کې کړي دي، ټول په کې شته؟ يا ترې څه شی پاتې دي؟ يا په کې څه زيات شی ليکلی شوی دی؟ نو هر سړی به په دغه وخت کې يقين کوي، چې د هغه يوه يوه ذره عمل بې له تزييده او تنقيصه په کې شته.

پخوا له دې نه دغه ذکر وو، چې په دنيا کې الله تعالی کتاب لوی قرآن لېږلی دی، او هغه حساب چې له لمر او سپوږمۍ او له نورو سره متعلق دی، اوس په دغو لوستليو شويو آيتونو کې يې د قيامت د حساب او کتاب ذکر وفرمايه، چې پر هغه پخواني حساب او کتاب باندې د نتيجې په ډول مرتّب کيږي.

مَنِ اهْتَدٰى فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهٖ ۚ وَمَن ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى ۗ

هر چا چې سمه صافه لاره ونیوله؛ نو بېشکه همدا خبره ده چې سمیږي دی په لارې لپاره د (نفعې د) ځان خپل، او هر څوک چې ګمراه شو؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې ګمراه کیږي پر ضرر د ځان خپل، او نه اخلي هیڅ اخیستونکی بار د ګناه د بل چا.

تفسیر: یعنې الله تعالی ګردو ته سمه صافه لاره ورښوولې ده، اوس که څوک پر هغې ځي که نه ځي اختیار لري، او پخپله دې خپله نفعه او نقصان وګوري ! ځکه چې د ده د عمل د طریقې نفع یا نقصان پخپله همده ته رسېدونکې ده، او د یوه سړي د ګناه پېټی او بار به د بل په سر نه باریږي.

وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتّٰى نَبْعَثَ رَسُولًا ﴿١٥﴾

او نه یو مونږ عذاب ورکوونکي (هیڅ طائفې ته) تر هغه پورې چې ولیږو مونږ کوم رسول (چې لاره د توحید او شریعت ورته بیان کړي).

تفسیر: یعنې بلا شُبهه بد عمل آفت راولي، خو الله تعالی پخوا له پوهولو څخه هیڅوک نه نیسي، نو ځکه رسولان لیږي، چې خلق غافله او بېخبره پرې نږدي، او له نېکو او بدو څخه یې په پوره ډول خبردار کړي، د هغو خبرو زیاته تشریح او ډېر توثیق د انبیاوو په ژبه وکړی شي، چې پرې انسان محض د عقل او فطرت په لار ښوونه پوهېدی شي (مثلاً د باري تعالی وجود یا یې توحید) او هغه شیان چې ادراک یې په محض عقل سره نه وي کافي؛ د وحي او الهام په رڼا کې وړاندې کړی شي، نو ځکه د خلقت له ابتداء څخه الله تعالی د وحي او د رسالت سلسله جاري ساتلې ده، څو د انبیاء علیهم السلام انوار او فیوض په دنیا کې داسې یوه فضا پیدا کړي، چې هیڅ یو معذّب قوم په دنیا یا په آخرت کې د جهل او ناپوهی عذر به وړاندې نه کړی شي، او په دغه پلمه د الله تعالی له عذابه ځان نشي ژغورلی (بچ کولی).

تنبیه: دلته مفسرانو د «أصحاب الفترة» او وړکیو پر تعذیب باندې بحثونه کړي دي، چې مونږ یې په دغه ځای کې د تطویل له خوفه نه شو لیکلی.

وَإِذَا أَرَدْنَا أَن نُّهْلِكَ قَرْيَةً أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا فَفَسَقُوا فِيهَا فَحَقَّ عَلَيْهَا الْقَوْلُ فَدَمَّرْنَاهَا تَدْمِيرًا ﴿١٦﴾

او کله چې اراده وفرمایو مونږ د دې چې هلاک کړو کوم کلی (ښار)؛ نو امر وکړو مونږ غټانو (مالدارانو) د هغه (ښار) ته (په طاعت د الله سره)؛ نو فسق وکړي دوی په هغه کې، نو حق (او ثابت) شي پر (ذمه د اوسېدونکو) د هغه کلی خبره (د عذاب)، نو هلاک کړو مونږ دوی په هلاکولو سختو سره.

تفسیر: یعنې کله چې د بد عملیو په سبب کوم کلی (یا ښار) تباه کیږي؛ نو خلق یې همداسې یو ناڅاپي دفعتاً نه نیول کیږي او نه هلاکیږي، بلکه د حجّت له اتمامه وروسته سزا ورکوله کیږي، او د نبي یا د نبي د نائبینو په ژبه د الله تعالی احکام هغوی ته رسولی کیږي، خصوصاً د هغه ځای مشرانو او بارسوخو خلقو ته چې د هغوی له منلو او نه منلو اثر پر ټولو لویږي، خو هرومرو (خامخا) اطلاع ورکوله کیږي، کله چې دغه مغروران او متکبّران سره له پوهې د الله تعالی پیغام نه مني، او په ټوکو او مسخرو بلا تکلّفه ترې غاړه غړوي، او په دغه وضعیت هغه کلی خراب او مسموموي، دلته نو دغه کلی خپل ځان ښکاره مجرم ثابتوي، او د الله تعالی د عذاب مستحق ګرځي، نعوذ بالله من شرور أنفسنا.

تنبیه: ځینې سلف وایي چې: په دې ﴿أَمَرْنَا مُتْرَفِيهَا﴾ آیت کې له امر نه مراد «أمر تکویني قدري» دی، او په ﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يَأْمُرُ بِالْفَحْشَاءِ﴾ کې د أمر تشریعي نفي مراده ده، نو د دواړو آیتونو په منځ کې هیڅ تضاد نشته.

وَكَمْ اَهْلَكْنَا مِنَ الْقُرُوْنِ مِنْ بَعْدِ نُوْحٍ ۭ وَكَفٰى بِرَبِّكَ بِذُنُوْبِ عِبَادِهٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا ﴿۱۷﴾

او ډېر هلاك كړي دي مونږ له (اهل د) قرنونو پس له نوح (لكه عاديان او ثموديان او نور)، او كافي دى رب ستا په ګناهونو د بندګانو خپلو ښه خبردار ښه ليدونكى.

تفسير: د آدم عليه السلام له زماني څخه د نوح عليه السلام تر زماني پورې ګرد خلق مسلمانان وو، وروسته شرك او بت پرستي پيدا شوه، نو نوح عليه السلام د هغوى د اصلاح لپاره ولېږلى شو، نوح عليه السلام تر سلهاوو كلونو پورې خلقو ته دعوت او تبليغ وكړ، مګر هيڅ اثر يې پر دوى ښكاره نشو، بالآخر هغوى ټول په طوفان (څپاند) كې هلاك كړل شول.

وروسته له دوى نور ډېر اقوام (لكه عاد، ثمود، او نور هم) هلاك كړل شو، حاصل يې دا چې د اقوامو د اهلاك سلسله د نوح عليه السلام د بعثت څخه وروسته شروع شوه.

﴿وَكَفٰى بِرَبِّكَ﴾ الآية ـ يعني هيڅوك بې قصوره نه نيول كيږي، او هيچا ته نامناسبه سزا نه وركوله كيږي، بلكه د هر چا ګناهونو ته ګوري، او د هغه ګرد اوضاع او اطوار په پوره ډول ورڅرګند (ښكاره) او معلوم دي، او د هغو سره مناسبه او موزونه سزا ورته وركوي، او همغسې معامله ورسره كوي.

مَنْ كَانَ يُرِيْدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهٗ فِيْهَا مَا نَشَآءُ لِمَنْ نُّرِيْدُ ثُمَّ جَعَلْنَا لَهٗ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلٰىهَا مَذْمُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿۱۸﴾

هر څوك چې وي چې غواړي (په عمل خپل سره فقط) دغه دنيا، نو په تلوار به وركړو مونږ ده ته په دې دنيا كې هومره چې زمونږ خوښه وي، لپاره د هغه چا چې اراده وفرمايو مونږ، بيا به وګرځوو مونږ ده ته دوزخ (په آخرت كې) چې ننوځي به په هغه دوزخ كې، ملامت كړى شوى شړلى شوى (له رحمته).

تفسير: يعني دا ضروري نه ده چې د دنيا هر يو عاشق (مين) فوراً هلاك كړى شي، بلكه مونږ له دغو خلقو څنې هغو كسانو ته چې تش د دنيوي متاع لپاره سرګردانه ګرځي، هر چا ته چې اراده وفرمايو او هغومره چې اراده وفرمايو، سم له خپله حكمته او مصلحته د دنيا سامان وركوو، څو د دوى جدوجهد او د فاني نېكيو فاني ثمره ور ورسيږي، او كه هغوى ته آخري سعادت مقدر نه وي؛ نو د شقاوت جام يې خو په پوره ډول تر څنډو (غاړو) پورې ورته ډك كړى شوى وي، او په نهايت ذلت او رسوايي د دوزخ د ابدي بنديخانې خوا ته په ټېل وهلو بيول كيږي.

وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ كَانَ سَعْيُهُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿۱۹﴾

او هر څوك چې غواړي آخرت (جنت) او كوښښ كوي هغه ته كوښښ لايق د ده (په طاعت د الله سره) حال دا چې دى (خالص) مؤمن هم وي؛ نو دغه كسان دي كوښښ د دوى مقبول (په نزد د الله كې).

تفسير: يعني د هر چا په زړه كې چې يقين او ايمان موجود وي، او په نېك نيت د الله تعالى رضا او خوښي او د اخروي ثواب لپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ورښوولې لارې باندې په عملي ډول منډې وهي، او ورځغلي، نو مونږ د دوى كوښښ له سره ضائع او خراب كوونكي نه يو، او يقيناً د أحديت په دربار كې په حسن قبول سره به مفخر او سرلوړى كيږي.

كُلًّا نُّمِدُّ هٰٓؤُلَآءِ وَهٰٓؤُلَآءِ مِنْ عَطَآءِ رَبِّكَ ۚ وَمَا كَانَ عَطَآءُ رَبِّكَ مَحْظُورًا ﴿٢٠﴾

هر يوه (له دغو طلب ګرو د دنيا او عُقبىٰ) سره مدد كومك كوو مونږ دغه (اول ټولي) سره (چې طالبان د دنيا دي)، او د دغه دويم ټولي سره (چې طالبان د عُقبىٰ دي) له وركولو د رب ستا، او نه دي وركول د رب ستا (په دنيا كې) منع كړى شوي (له هيچا نه).

تفسير: يعني الله تعالى سم له خپله حكمته او مصلحته ځينو د دنيا طالبينو ته دنيا، او د آخرت ګردو طالبانو ته آخرت عطا فرمايي، د الله تعالى په عطا كې هيڅوک مانع او مزاحم نشي كېدى، يا يې دا مطلب چې د دنيا طالب وي، يا د آخرت دغو دواړو ته له دنيوي امداد څخه حسب المصلحت حصه وررسيږي، محض د كفر او عصيان لامله د دنيوي بخشش دروازې او ورونه نه پرې تړلى كيږي.

اُنْظُرْ كَيْفَ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ ۚ وَلَلْاٰخِرَةُ اَكْبَرُ دَرَجٰتٍ وَّاَكْبَرُ تَفْضِيْلًا ﴿٢١﴾

وګوره چې څرنګه فضيلت وركړى (غوره كړي) دى مونږ ځينې د دوى ته پر ځينو نورو (په رزق او په نورو كې)، او خامخا آخرت ډېر لوى دى له جهته د مرتبو او ډېر لوى دى له جهته د بهتر والي (له دنيا نه).

تفسير: يعني لكه چې دنيوي ژوندون كې د مال، دولت، عزت، حكومت او د نورو په اعتبار يو په بل باندې يوه اندازه فضيلت لري، په همدې باندې قيامت هم قياس كړئ ! چې په آخرت كې به د اعمالو او احوالو په لحاظ په څه اندازه د مراتبو فرق وي، لكه چې له نصوصو څخه ثابت دي چې د جنت درجات، او د جهنّم دركات سره بې حده متفاوت دي، په حديث كې راغلي دي چې په جنت كې سل درجې دي، او په هرو دوه درجو كې به د ځمكې او اسمان په اندازه تفاوت وي، لاندني اوسېدونكو ته به باندني اوسېدونكي داسې ښكاري لكه چې مونږ ته له ځمكې څخه په افق كې ستورى برېښي، پخوا يې راښوولي وو؛ چې د جنّت دغه درجې د هغو كسانو په برخه كيږي، چې د آخرت لپاره د هغه سره لائقې منډې يې وهلي وي، او لازم كوښښ او زيار (محنت) يې وربشكلى وي، په وروستنيو آياتونو كې تر لرې ځايه پورې د آخرت د سعي طريقه راښوولې شوې ده، چې د هغې په تعميل سره انسان ته دغه لوړ مقامات حاصليږي، د ابن عبّاس رضي الله تعالى عنهما قول دى چې: «حق تعالى د (تورات) ګرد اخلاقي تعليم د بني اسرائيلو د سورت په (١٥) آيتونو كې داخل كړى دى، هغه پنځلس آيتونه د دې سورت له درېمې ركوع له سره څخه شروع كيږي.

لَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُوْمًا مَّخْذُوْلًا ﴿٢٢﴾

مه نيسه (اى بنده) سره له الله معبود بل، (او كه دې ونيو)؛ نو به كېنې (تل په دوزخ كې) ملامت كړى شوى بې ملګرى (بې برخې كړى شوى له خيره).

تفسير: يعني شرک داسې ظاهر البطلان څيز دى، چې د هغه له اختيارولو څخه د الله تعالى او د هغه پرښتې، بلكه د دنيا د ګردو پوهانو په نزد تاسې مذموم او ملزم ګرځئ ! لكه چې نن مونږ پخپلو سترګو سره ګورو په هغو مذاهبو كې چې د شرک صريح تعليم وو؛ هغه هم د پوهانو په جرګو كې د ځاى حاصلولو لپاره ورو ورو د خپل مذهب اصلاح او ترميم كړى دى، او د توحيد په لوري رانژدې كيږي، هر يو عاقل دغه محسوس كړى دى، چې اشرف المخلوقات انسان لپاره به دغه ډېر د ذلت او رسوايۍ موجب وي، چې له خپله ښكته، يا د كوم عاجز مخلوق په مقابله كې سر په سجده ولويږي، خصوصاً بيا هغو څيزونو ته د غوښتنې لاس وغځوي چې هغه يې پخپله تورلى او جوړ كړى وي، هغه

کسان چې پاک الله پر پرېږدي، او د غير الله په مقابله کې سر ښکته کوي؛ نو بې نيازه الله جل جلاله د حقيقي نصرت او برکت دروازه پر دوی تړي، او د کمزورۍ او بېکسۍ په حالت کې يې پر پرېږدي، لکه چې د سخت مشکل او صعوبت په وخت کې دی امداد او اعانت ته ډېر اړ او محتاج وي، هيڅوک به له ده سره مرسته او معاونت ونه کړي، «ضَعُفَ الطالبُ والمطلُوب».

وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْٓا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا ؕ اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا ﴿۲۳﴾ وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيٰنِيْ صَغِيْرًا ﴿۲۴﴾

او حکم فرمايلی دی رب ستا چې عبادت مه کوئ تاسې (د بل هيچا) مګر يوائې د همدغه (الله)، او (احسان کوئ) له والدينو (مور او پلار) سره په احسان کولو سره، او که چېرې هرومرو ورسېږ تا څخه زوړوالي ته يو له دې دواړو د دوی (يعني مور او پلار)؛ نو مه وايه ته دې دواړو ته (کلمه د) اف، او مه رټه دوی دواړه، او وايه دې دواړو ته خبره پسته (ادبناکه). او ښکته کړه لپاره د دې دواړو وزر (اوږه) د تواضع (نه د تکبّر) له مهربانۍ، او ووايه: ای ربه څما ! مهرباني (او بخښنه) وکړه دې دواړو ته لکه چې تربيه (پالنه) يې کړېده څما په هغه حال کې چې زه صغير وړوکی ووم.

تفسير: په حقيقت سره خو پاک الله د مولود وجود عطاء فرمايي؛ مګر والدين (مور او پلار) ده د ايجاد ظاهري ذريعه ده؛ نو ځکه پاک الله په څو آياتونو کې د خپلو حقوقو پسې د والدينو د حقوقو ذکر فرمايلی دی، په حديث کې راغلي دي: «هغه سړی له خاورو سره برابر او ذليل شو، چې خپل مور او پلار ومومي، او دوی د خدمت کولو په وسيله جنّت ځان ته حاصل نه کړي».

له والدينو سره نيکي کول دا دي: چې په ژوندون کې يې خپل ځان او مال سره د هغوی خدمت وکړي، او د زړه په اخلاص سره د دوی تعظيم او محبّت په ځای راوړي، او د مړ کېدلو څخه وروسته د هغوی جنازه اداء کړي، او د دوی لپاره دعاء وغواړي، او حتی المقدور د هغو عهد پوره کړي، او د دوی له دوستانو سره په تعظيم او ښه سلوک معامله وکړي، او د دوی له اقاربو سره د صله رحمۍ او ښېګڼې (نېکۍ) چارې وکړي، وغير ذلک.

﴿اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَآ اَوْ كِلٰهُمَا﴾ الآية - په زوړتوب کې د خدمت احتياج زيات وي، چې د دې لامله آل او عيال هم زړه تنګی او پرېشانه کيږي، او په زوړوالي کې هوښ او حواس هم پخپل ځای کې نه وي پاتې، د ښه او سعادتمن اولاد کار دا وي، چې په داسې وخت کې د والدينو له خدمت څنې زړه تنګه نشي، پاک قرآن تنبيه راکوي چې د مور او پلار رټل او ناکاره خبرې کول چېرې، بلکه تش د «أف» کلمه دې هم د دوی په مقابل کې له خولې څخه نه وباسي ! چې د زړه تنګۍ علامه ده، بلکه د خبرو او اترو په وخت کې د دوی ادب او تعظيم دې په پوره ډول سره وکړي ! سعيد بن المسّيب (رحمه الله) فرمايي چې: «صالح ولد ته لازم دي، چې له مور او پلار سره داسې خبرې اترې وکړي لکه چې يو خطاکاره مريي د خپل سخت مزاج بادار (سردار) سره په نهايت خوف او وېره خبرې کوي».

﴿وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ﴾ الآية - يعني څه وخت چې زه بيخي کمزوری او ناتوانه وم؛ دوی څما په تربيت او روزنه خپلې خولې بهولې دي، او سم له خپله خياله او توانه يې ما ته د هر راز راحت، خوشالي، او د ښېګڼې (فائدې) د رسولو په فکر کې وو، له زرګونو آفاتو او حوادثو څنې څما د ژغورنې او ساتنې په فکر او کوښښ کې وو، په څو څلې څما له خاطره خپل ځان په مصائبو او مصاعبو او متاعبو غورځولی دی، نن چې د دوی د ضعيفی وخت

راغلی دی؛ نو څه چې څما له قدرته او توانه کيږي، زه هم د هغوی خدمت او تعظيم کوم، خو د دوی پوره حق نشم اداء کولی، څکه ای الله ! ستا له درباره استدعاء کوم چې په دغه زوړالي او وروسته له موته پر دوی باندې د رحمت نظر وفرمايي !.

په حديث کې راغلي دي چې «د پاک الله رضاء د مور او پلار په رضاء کېدلو کې ده، او په غضب کېدل د الله تعالی د مور او پلار په غضب کې دي»، او په بل حديث کې داسې راغلي دي چې «څان وساتئ له عاقوالي د مور او پلار نه ! څکه بوی د جنت چې د يو زر کاله لار له مسافې نه نېکانو ته رسيږي؛ هغه عاقّ الوالدين ته له سره نه رسيږي».

رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ ۚ إِن تَكُونُوا صَالِحِينَ فَإِنَّهُ كَانَ لِلْأَوَّابِينَ غَفُورًا ﴿٢٥﴾

رب ستاسې ښه عالم (خبردار) دی په هغه څه چې په نفسونو (زړونو) ستاسې کې دي، که يئ تاسې نېکان (له خپلو ميندو او پلرونو سره)؛ نو بېشکه چې الله دی لپاره د توبه کوونکي ډېر مغفرت کوونکی (د خطيئاتو).

**تفسير:** يعني د والدينو تعظيم او د دوی په مقابله کې تواضع او عاجزي کول ښايي چې د زړه په اخلاص او صميميت وي، الله تعالی ته ښه معلوم دی چې کوم يو او څرنګه د مور او پلار خدمت کوي، که في الواقع تاسې نېک او سعادتمن يئ، او د الله تعالی په لوري رجوع کوئ، او په اخلاص او حق پېژندلو د دوی خدمت کوئ؛ نو الله تعالی به ستاسې خطاوې او تقصيرات معافوي.

فرض يې کړئ که کوم وقت د نېک نيتی، له زړه تنګی يا د فکر او چرت د خرابوالي لامله ستاسې څنې د مور او پلار د خدمت څخه څه څيز پاتې شوی وي؛ نو بيا توبه او رجوع ترې وکړئ ! نو پاک الله ډېر مغفرت کوونکی دی.

**تنبيه:** د دې خبرې تفصيل دې په فقهيه وو او نورو کتابونو کې وکتلی شي، چې د والدينو فرمان منل په کومو ځايونو کې روا؟ او په کومو کومو ځايونو کې ناروا دی؟ په «روح المعاني» کې هم پر دغه موضوع مفيد او مبسوط کلام شوی دی، فليُراجع.

وَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرْ تَبْذِيرًا ﴿٢٦﴾

او ورکوه (ای بنده !) خاوند د خپلوۍ ته حق د هغه او مسکين نادار ته او مسافر ته او اسراف مه کوه ! په اسراف کولو سره.

**تفسير:** يعني د اقاربو او خپلوانو هر قسم مالي او اخلاقي حقوق اداء کړئ ! د محتاجانو او مسافرانو له احواله څان خبروئ ! فضول خرڅ دا دی چې پر معاصيو او لغوياتو مال ولګول شي، يا په مباحاتو کې بې فکره او بې له مصلحته او بې د خير او شر معلومولو څخه دومره زيات ولګولی شي، چې وروسته له هغه د حقوقو د فوتېدو او د حرامو د ارتکاب سبب وګرځي.

إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ ۖ وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِرَبِّهِ كَفُورًا ﴿٢٧﴾

بېشکه چې اسراف کوونکي دي دوی ورونه د شيطانانو (يعني په مثل د شيطانانو دي په شرارت او اتلاف کې)، او دی شيطان رب خپل ته ډېر ناشکره.

**تفسير:** يعني مال د الله تعالی لوی نعمت دی، چې په هغه سره په پوره زړه او خاطر جمعۍ سره عبادت کيږي، او د نورو اسلامي خدماتو او د نېکيو انجام هم په هغه سره په عمل راځي، نو د مال بېځايه لګول او صرفول داسې ناشکري ده

چې د شيطان له اغواء او تحريکه او په وقوع راځي، او انسان په ناشکرئ د شيطان سره مشابه او ورته کيږي، همغسې چې شيطان د الله تعالی ورکړي قوّتونه په عصيان او اضلال کې صرفوي، دی هم د الله تعالی ورکړي نعمتونه د هغه په عصيان او نافرمانۍ او طغيان کې لګوي.

وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِّن رَّبِّكَ تَرْجُوهَا فَقُل لَّهُمْ قَوْلًا مَّيْسُورًا ﴿٢٨﴾

او که اعراض کاوه تا له دغو (ذوي القربی، مساکين، ابن السبيل او نورو نه) لپاره د طلب د رحمت (مهربانۍ) له رب ستا چې ته اميد لرې د هغه (رحمت)؛ نو ووايه هغوی ته خبره پسته خوږه.

تفسير: يعنې هغه څوک چې تل سخاوت کوي، او يو وخت له هغه سره څه شی نه وي، نو د الله تعالی په نزد چې د اميد کوونکي نااميده تلل ښه نه ښکاري، او د هغه محتاج قسمت الله تعالی سخيانو ته رسوي؛ نو ځکه که يو وخت دی څه شی ورنشي کړی؛ نو په پستې او خوږې ژبې سره دې ترې معذرت او معافي وغواړي ! مثلاً ورته ووېلی شي: کله چې الله ماته څه شی راکړي؛ نو ان شاء الله تعالی زه به دتا خدمت وکړم ! په سختئ او بد اخلاقئ سره له ځواب ورکولو څخه دغه اندېښنه شته چې چېرې ستاسې پخواني خيراتونه ابته او باطل او برباد شي.

وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَّحْسُورًا ﴿٢٩﴾

او مه ګرځوه لاس خپل تړلی شوی تر غاړې خپلې پورې (يعنې بخل او شومتيا مه کوه)، او مه يې غځوه په بيخي غځولو سره (يعنې اسراف هم مه کوه) نو کښېنې به ته ملامت کړی شوی (په امساک کې)، بې ماله پښېمانه شوی (په اسراف کې).

تفسير: يعنې چې ګرد ورته مخ واړوي، چې کنسک، بخيل او مچ خوږونکی دی، يا دا چې دومره سخا او ورکړه دې ولې وکړه، چې ته پخپله محتاج او ناداره پاتې شوې؟ الغرض په هره معامله کې د توسّط او اعتدال رعايت پکار دی، نه خپل لاس دې له شومتيا او بخله دومره کلک ونيسه ! او راټولوه يې چې ستا له غاړې سره ولګيږي، او نه له خپله طاقته اوتوانه زيات داسې خلاص لاس او پرانستلی موټی ولرې، چې وروسته ته پخپله محتاج او په غوښتلو او سوال خوله پرانيځې، او ستا لاس همغسې خلاص پاتې شي، (ابن کثير رحمه الله) ليکي: «فتعطي فوق طاقتك، وتُخرج أكثر من دخلك»، يعنې له خپله طاقته زيات يا له خپله دخله زائد صرفول هم د ﴿وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ﴾ لاندې داخل دی، په حديث کې راغلي دي: «ما عال من اقتصد» «نه محتاجيږي هغه څوک چې ځان ته اقتصاد غوره کړي».

إِنَّ رَبَّكَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِعِبَادِهِ خَبِيرًا بَصِيرًا ﴿٣٠﴾

بېشکه رب ستا پراخوي روزي لپاره د هغه چا چې اراده وفرمايي (د پراخولو يې)، او تنګوي (يې په هغه چا چې اراده وفرمايي)، (د تنګولو يې) بېشه چې دغه (الله) په (مصالحو د بندګانو خپلو) ښه خبردار ښه ليدونکی دی.

تفسير: يعنې ستاسې له امساک او لاس نيولو څخه به نه تاسې غنيان کېږئ، او نه به نور فقيران ګرځي، او نه ستاسې له سخاوته هغه غني کيږي، او نه تاسې فقيران کېدی شئ، د فقر او د غناء د مختلفو احوالو راليږل د هغه مالک علی الاطلاق په لاس دي، ستاسې کار په توسّط او اعتدال او اقتصاد کې د الله جل جلاله د حکم امتثال دی.

وَلَا تَقْتُلُوٓا اَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ اِمْلَاقٍ ؕ نَحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَاِيَّاكُمْ ؕ اِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْاً كَبِيْرًا ﴿٣١﴾

او مه وژنئ تاسې اولاد خپل د وېرې د فقره، همدا مونږ روزي ورکوو دوی ته او تاسې ته هم، بېشکه چې قتل د دوی ده خطا (ګناه) لويه، (چې د نسل او د نوعې قطع ده).

تفسير: ځينو کافرانو خپل اولادونه وژل، چې د دوی خواړه او لګښت مونږ له کومه کړو، په (٨ جزء د الأنعام سورت په (١٩) رکوع) کې په همدغه مضمون يو آيت تېر شوی دی؛ تفصيل دې وکتل شي، او دغه د بې رحمۍ حرکت د انسانيت او د تهذيب له اصوله مخالف دی، او له دی څخه ځرګنديږي (ښکاريږي) چې داسې کوونکی د الله تعالى پر رزاقيت اعتماد نه لري.

وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنٰىٓ اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً ؕ وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿٣٢﴾

او مه نژدې کېږئ تاسې زنا ته، بېشکه چې دا زنا ده قبيحه (عقلاً او شرعاً)، او بده ده دغه زنا له جهته د روش هم (چې زيان او فتنه ترې پيدا کيږي).

تفسير: يعني زنا کول خو ډېر سخت کار دی، تاسې زنا ته مه نژدې کېږئ !، په ﴿وَلَا تَقْرَبُوا﴾ کې د زنا له دواعيو او مباديو څخه د نه نژدېوالي او نه تقرّب هدايت کړی شوی دی، يعنې پردۍ ښځې ته بې له شرعي عذره کتلو او نظر کولو، مچې کولو، لاس وروړلو او نورو څخه ځانونه وژغورئ (وساتئ)، او بيخي د پرديو ښځو له مقاربته لرې ګرځئ ! ځکه چې له زنا څخه په انسابو کې بې نظمي او بې ترتيبي او اشکال پيښېږي، او ډېر قسم جنګونه او جګړې ترې پيدا کيږي، او د ګردو لپاره يوه بده لاره په وجود راځي.

شاه صاحب ليکي: «که دغه لاره جوړه شي؛ نو يو سړی به د بل سړي پر ښځه نظر اچوي، او هغه به د ده ښځې ته ګوري، د امام أحمد (رحمه الله) په مسند کې راغلي دي چې: «يو سړي رسول أکرم صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړه چې: «ماته اجازه راکړه چې زنا وکړم !» د دې خبرې د اورېدلو څخه ګرد حاضرين ورته په قهر شول، چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخکې داسې ګستاخي؟ خبردار چپ شه !، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې: «آيا ته دغه حرکت د خپلې مور، خور، ترور، تورۍ او نورو په نسبت خوښوې؟» هغه عرض وکړ چې: «يا رسول الله ! الله دې ما له تا جار (قربان) کړي ! له سره يې نه خوښوم»، نو رسول الله مبارک وفرمايل چې: «نور خلق هم تا غوندې دي، او له سره خپلو ميندو، خويندو، ترورړيانو، تورېګانو او نورو په نسبت دغسې فعل نه خوښوي» بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته دعاء وکړه، چې ای الله ! د ده ګناه ورمعافه کړه ! او زړه يې ورپاک کړه ! او فرج يې وساته !»، أبو أمامه رضي الله عنه فرمايي چې: له دغه دعاء څخه وروسته دغه سړي داسې متقي شو؛ چې ښځو او نورو مناهيو ته به يې له سره نه کتل».

«اللهم صل على سيدنا محمد وعلى آل سيدنا محمد و على أصحاب سيدنا محمد وبارک وسلم».

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِىْ حَرَّمَ اللّٰهُ اِلَّا بِالْحَقِّ ؕ وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُوْمًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهٖ سُلْطٰنًا فَلَا يُسْرِفْ فِّى الْقَتْلِ ؕ اِنَّهٗ كَانَ مَنْصُوْرًا ﴿٣٣﴾

او مه وژنئ تاسې نفس هغه چې حرام کړي دي الله (وژل د هغه) مګر په حقه سره (چې ارتداد او زنا مع الإحصان او قصاص دی)، او هر څوک چې ووژلی شو په دې حال چې مظلوم وي؛ نو په تحقيق ګرځولی دی مونږ لپاره د وارث د هغه زور (او قوّت چې له قاتل څخه انتقام اخستی

شي)، نو اسراف دې نه کوي په قتل کې (چې غير حق بل څوك وژني بې له قاتله)، په تحقيق دغه (وارث) دی مدد ورسره کړی شوی.

تفسير: په صحيحينو شريفينو کې راغلي دي، چې د هيڅ مسلمان وينه تويول نه دي حلال، مګر په درې صورتونو کې: (۱): د ځان په بدل ځان، (۲): د محصن زاني، (۳): د هغه سړي چې دين پرېږدي، يا مرتد شي، او له جماعته بيليږي.

﴿وَمَن قُتِلَ مَظۡلُومٗا﴾ الآية ـ يعنې د مقتول اولياء اختيار لري چې د حکومت په وسيله د هغې وينې بدل واخلي، او هغه قاتل په قصاص ورسوي، ليکن د بدل اخيستلو په وخت کې له حده تېری ونه کړي ! مثلاً د قاتل په ځای دې غير قاتل نه وژني !، يا نور بې ګناهان دې له قاتل سره نه شاملوي ! يا د قاتل پوزه، غوږونه، اونور دې نه پرې کوي ! او مُثله دې ونه کړي !.

﴿إِنَّهُۥ كَانَ مَنصُورٗا﴾ يعنې الله له هغه وارث سره مدد وفرمايه، چې د بدل اخيستلو حق يې ورکړ، او حاکمانو ته يې امر وفرمايه چې د دغه وارث په حق رسونه کې دې هيڅ قصور ونه کړي !، بلکه پر هر چا باندې لازم دي چې د وينې په بدل اخيستلو کې له وارث سره معاونت او مرسته وکړي ! نه چې بالعکس د قاتل حمايت وکړي، او پر وارث باندې هم لازم دي چې د يوه په ځای دې دوه تنه نه وژني !، يا که پخپله قاتل يې په لاس ورنشي، نو داسی نه چې د هغه قاتل ځوی يا ورور يا نور ووژني، لکه چې د جاهليت په زمانه کې همداسې بد رواج وو.

وَلَا تَقۡرَبُواْ مَالَ ٱلۡيَتِيمِ إِلَّا بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ حَتَّىٰ يَبۡلُغَ أَشُدَّهُۥۚ وَأَوۡفُواْ بِٱلۡعَهۡدِۖ إِنَّ ٱلۡعَهۡدَ كَانَ مَسۡـُٔولٗا ﴿٣٤﴾

او مه نژدې کېږئ تاسې مال د يتيم ته (او تصرّف په کې مه کوئ) مګر په هغې طريقې سره چې وي هغه ډېره ښه (په حفاظت او زيادت کې)، تر هغه پورې چې ورسيږي حدّ د بلوغ خپل ته، او وفا کوئ په عهد، بېشکه چې عهد دی پوښتېدلی شوی (له عاهده).

تفسير: يعنې د يتيم مال ته لاس مه وروړئ ! هو، که د هغه د مال حفاظت او صيانت او خبر غوښتنه ستاسی مقصود وي؛ نو په هغه کې هيڅ مضائقه نشته، څه وخت چې دغه يتيم ځلمی شي، او پخپل نفع او نقصان وپوهيږي، نو مال يې وروسپارئ !.

په دغه ﴿وَأَوۡفُواْ بِٱلۡعَهۡدِۖ﴾ کې ګرد عهدونه داخل دي، که له الله تعالی سره وکړی شي، يا له بندګانو سره مشروط په دې چې غير مشروع نه وي.

وَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ إِذَا كِلۡتُمۡ وَزِنُواْ بِٱلۡقِسۡطَاسِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلٗا ﴿٣٥﴾

او پوره ورکوئ تاسې پيمانه هر کله چې پيمانه کوئ تاسې، او تول کوئ تاسې په تلې برابرې سره، دغه (پوره کول د کيل او وزن) خير ډېر غوره او خورا (ډېر) ښه دی له خيانته له جهته د مآل (او عاقبت).

تفسير: يعنې د وزن په وخت کې ډنډې مه وهئ ! په تللو او پيمانه کولو کې له تزييد او تنقيصه د معاملاتو نظام مختل (خراب) کيږي، او په کې ګډوډې راځي، د شُعيب عليه السلام د قوم د اهلاك قصه پخوا له دې نه تېره شوه، د هغوی ډېره لويه عملي ګناه همدغه بيان شوې ده، په رواياتو کې راغلي دي: «د هر هغه سړي چې پر حرامو قدرت ومومي، او محض د الله تعالی له وېرې هغه ونه کړي؛ نو الله تعالی پخوا له آخرته په دنيا کې د هغه نعم البدل ورعطاء کړي».

وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ اِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ اُولٰٓئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُوْلًا ﴿۳۶﴾

او مه کوه پيروي د هغه کار چې نه وي تا ته په هغه پوهه (قول وي که فعل)، بېشکه غوږ او سترګه او زړه هر يو له دغو (درې واړو) دي له هغه څخه پوښتنه کړی شوي (په قيامت کې چې تا په دنيا کې ولې ګناه کوله؟).

تفسير: يعنې بې له تحقيقه خبره له خپلې ژبې څخه مه وباسه ! او نه په ناپوهۍ او په پټو سترګو د هغه متابعت وکړه ! انسان ته ښايي چې له خپلو غوږونو او زړه او ماغزو څخه کار واخلي ! او د کفايت په اندازه تحقيق او تعمّق وکړي ! بيا دې يوه خبره له خولې څخه وباسي ! يا پر کومه خبره عمل وکړي ! له اورېدلو شويو سره کوم قطعي حکم صادر نه کړي ! او نه پرې عمل وکړي !.

په دغه کې د دروغو شهادت، غلط تهمتونه لګول، بې له تحقيقه خبرې اورېدل، بې له تحقيقه د کوم سړي د ربړولو (تکليف رسولو) پسې لوېدل، يا چټي (بېکاره) بغض او عداوت ورسره قائمول، د پلرونو او د نيکونو چټي تقليد پسې لوېدل، د رسم او رواج لامله د خلاف الشّرع او ناحقې خبرې حمايت کول، د ناليدلو او نااورېدلو شيانو، لکه ليدلي يا اوريدلي څرګندول، د غير معلومو شيانو په نسبت داسې دعوی کول چې زه پرې پوهېږم، دغه ټول صورتونه د دغه آيت لاندې شامل دي، په ياد يې ولرئ ! چې د قيامت په ورځ کې د دغو ټولو قوتونو په نسبت به سوالونه کيږي، چې تاسې دغه قوتونه په کومو کومو ځايونو کې لګولي دي؟ او ولې تاسې هغه قوّتونه مو بې ځايه او بې موقعه صرف کړي دي؟.

وَلَا تَمْشِ فِي الْاَرْضِ مَرَحًا ۚ اِنَّكَ لَنْ تَخْرِقَ الْاَرْضَ وَلَنْ تَبْلُغَ الْجِبَالَ طُوْلًا ﴿۳۷﴾

او مه ګرځه ته په ځمکه کې په دې حال کې چې خاوند د خيال (او تکبّر اوسې)، بېشکه چې ته له سره به څيري نه کړې ځمکه (په دربولو د پښو سره له کبره) او له سره به ونه رسيږې (سرونو د) غرونو ته له جهته د اوږدوالي.

تفسير: يعنې د متکبّرانو تقليد او متابعت انسان ته ښه نه ښکاري، نه په زوره د پښو په دربولو سره ځمکه څيريدی شي، او نه د غاړې له هسکولو (اوچتولو) او د ټټر د باندې ايستلو څخه سړی د غرونو په قدر جګيدی شي، نو بيا په داسې ضعف او عجز او په دغه بساط کې خپل ځان دومره پړسولو او اوږده غځولو څخه څه فائده په لاس راځي؟.

كُلُّ ذٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهٗ عِنْدَ رَبِّكَ مَكْرُوْهًا ﴿۳۸﴾

ګرد دغه (۱۱ امرونه ۱۲ نهي «ولا تجعل» نه تر دې ځايه)، ده بدي د هغه په نزد د رب ستا بد ګڼل شوې.

ذٰلِكَ مِمَّآ اَوْحٰٓى اِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ الْحِكْمَةِ ؕ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَتُلْقٰى فِيْ جَهَنَّمَ مَلُوْمًا مَّدْحُوْرًا ﴿۳۹﴾

دا (ټول احکام) له داسې قسمه دي چې وحي کړې ده تاته رب ستا له حکمت (او عقلي کارونو څخه)، او مه نيسه ته له الله سره معبود بل، (که دې ونيو)؛ نو وبه غورځولی شې په دوزخ کې ملامت کړی شوی رټلی شوی (له رحمته د الله).

تفسير: يعنې پاس هغه پر مغز او بېش بها نصيحتونه چې شوي دي، دا ګرد هغه علم او حکمت او تهذيب او موعظت او اخلاقي خبرې دي، چې سليمه عقول يې قبلوي، چې هغه ګرد د وحي په وسيله نبي أمّي صلی الله عليه وآله وصحبه وسلّم ته بلاواسطه او دغه محمّدي امت ته د رسُول الله صلی الله عليه وسلم په واسطه نازل او راليږلي شوي دي.

د پاس ذکر شويو نصائحو شروع له توحيد نه شوې وه: ﴿لَا تَجۡعَلۡ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتَقۡعُدَ مَذۡمُومٗا مَّخۡذُولٗا﴾، د هغه په خاتمه کې چې د ﴿وَلَا تَجۡعَلۡ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلۡقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومٗا مَّدۡحُورًا﴾ آيت دی؛ بيا هم د توحيد تذکر او يادونه شوې ده، څو قاري وپوهېده شي، چې د تمامو حسناتو ابتداء او انتهاء د الله تعالی د خالص توحيد سره وي.

﴿أَفَأَصۡفَىٰكُمۡ رَبُّكُم بِٱلۡبَنِينَ وَٱتَّخَذَ مِنَ ٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ إِنَٰثًاۚ إِنَّكُمۡ لَتَقُولُونَ قَوۡلًا عَظِيمٗا ٤٠﴾

آيا نو غوره کړي يئ تاسې رب ستاسې په ځامنو سره او (پخپله الله ځان ته -په زعم ستاسې-) نيولي دي له پرښتو څخه ښځې، لونې، بېشکه تاسې چې يئ خامخا وايئ خبره ډېره لويه.

تفسير: يعنې يو د الله تعالی لپاره د اولاد تجويز، او اولاد هم د جونو په صورت چې تاسې هغو ته په ډېره سپکه ګورئ؛ ډېر جسارت او لويه سپين سترګي او ګستاخي ده.

﴿وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ لِيَذَّكَّرُواْ وَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا نُفُورٗا ٤١﴾

او خامخا په تحقيق مکرّر بيان کړي مونږ په دغه قرآن کې لپاره د دې چې پند پرې واخلي دوی، اونه زياتوي دوی ته مګر تېښته او لرې والی (له حقه).

تفسير: يعنې قرآن عظيم په مختلفو عنوانونو او په رنګارنګ دلائلو او شواهدو دغه مشرکين پوهوي، لکه دغه بدبختان د پند او نصيحت د حاصلولو په ځای لا زيات تور خوري، او په وحشت تښتي، او د بې لارۍ په لوري منډې وهي، او ورځغلي.

﴿قُل لَّوۡ كَانَ مَعَهُۥٓ ءَالِهَةٞ كَمَا يَقُولُونَ إِذٗا لَّٱبۡتَغَوۡاْ إِلَىٰ ذِي ٱلۡعَرۡشِ سَبِيلٗا ٤٢﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې که وی له الله سره نور معبودان لکه چې وايي دغه مشرکان؛ نو هلته به خامخا لټولي به وو دغو (معبودانو) طرف د څښتن (خاوند) د عرش ته لاره (د ورتلو لپاره د جنګ).

تفسير: يعنې دغه اصنام او نور چې تاسې يې ای مشرکانو د الوهيت شريکان او حصه داران راښيئ، که په واقع او رښتيا سره معبودان وی؛ نو دوی به د پردي محکوميت څرنګه خوښاوه؟ ښايي چې ګرد به ټولېدل، او د الله تعالی د سلطنت تخت به يې په بل مخ اړوه، که داسې ويلی کيږي چې د عرش د لوی څېښتن (خاوند) په مقابل کې د دوی څه زور او قوّت نه رسيږي؛ نو د داسې يو عاجز مخلوق عبادت کول په انتهايي درجه حماقت دی، او که هغه معبودان پخپله د رب العرش د خوښی او رضا خوښوونکي دي، او د هغه د قرب حاصلولو پسې ګرځي، او د هغه خوشالي ځان ته ضرورت بولي؛ نو د هغو عابدانو ته زيات د دې خبرې ضرورت شته چې د الله أکبر د رضاء او د خوښی حاصلولو په فکر کې ولوېږي، ليکن الله تعالی دګردو انبياوو عليهم السلام په ژبه او د انساني فطرت په معرفت له شرک څخه د خپلې بېزارۍ اظهار فرمايلی دی، نو بيا د تعجّب ځای دی، چې دغه أحمقان پر کومه لاره د ظالمانو او بې انصافانو په شان روان دي.

﴿سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يَقُولُونَ عُلُوّٗا كَبِيرٗا ٤٣ تُسَبِّحُ لَهُ ٱلسَّمَٰوَٰتُ ٱلسَّبۡعُ وَٱلۡأَرۡضُ وَمَن فِيهِنَّۚ وَإِن مِّن شَيۡءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمۡدِهِۦ وَلَٰكِن لَّا تَفۡقَهُونَ تَسۡبِيحَهُمۡۚ إِنَّهُۥ كَانَ حَلِيمًا غَفُورٗا ٤٤﴾

پاکي ده الله لره او ډېر پورته دی له هغه څه چې وايي دوی، په ډېر لوی پورته والي سره. تسبيح وايي ده ته اسمانونه اوه واړه او ځمکه، او هغه څوک چې په دوی کې دي، او نشته هيڅوک

(له مخلوقاتو) مګر چې تسبيح وايي سره له ثناء د دغه (الله)، مګر نه پوهيږئ تاسې په تسبيح د هغوی، بېشکه دغه (الله) دی ښه تحمّل والا (په تأخير د عقوبت لپاره د انابت)، ښه بخښونکی د ګناهونو دی.

تفسير: يعنې هر مخلوق د «قال» په ژبې، يا د «حال» په ژبې د الله تعالى پاکي او ښېګڼه (صفت) بيانوي، ليکن تاسې پرې نه پوهېږئ (ځکه ستاسې په لُغت سره نه دي)، يعنې د تأمّل نه کولو له سببه يا د هغه قوّت د فقدان لامله چې د هغه په ذريعه د ځينو مخلوقاتو «قالي» تسبيح واورئ، او پرې وپوهېدی شئ، او که کوم سړی سره له نه پوهېدلو هغه قبول نه کړي، يا د هغه پر مقتضٰی عمل ونه کړي؛ نو دغه پوهېدل د نه پوهېدلو په حکم کې دي.

وَاِذَا قَرَاْتَ الْقُرْاٰنَ جَعَلْنَا بَيْنَكَ وَبَيْنَ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ حِجَابًا مَّسْتُوْرًا ۟

او کله چې لولې ته (ای محمده) قرآن؛ نو ګرځوو (پيدا کوو) مونږ په منځ ستا او په منځ د هغو کسانو کې چې نه راوړي ايمان په (راتللو) د آخرت پرده پټوونکې تا لره (له ستر ګو د دوی).

تفسير: يعنې هغه سړی چې آخرت نه مني، او د خپل ښو او بدو انجام ته څه فکر نه چلوي؛ نو هغه به د نصيحت په طرف ولې خپل فکر لګوي؟ کله چې دی له سره د نجات په فکر کې نه دی؛ نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم په احوالو او اقوالو کې د غور کولو يا د رسالت تر درباره پورې د رسېدلو څه ضرورت به ورپاتې وي، پس همدغه په آخرت باندې ايمان نه راوړل او د انجام له طرف بې فکري هغه معنوي پرده ده چې د دې سړي او د نبي عليه السلام په منځ کې ځړولې (لګولې) کيږي.

وَّجَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ وَاِذَا ذَكَرْتَ رَبَّكَ فِي الْقُرْاٰنِ وَحْدَهٗ وَلَّوْا عَلٰٓي اَدْبَارِهِمْ نُفُوْرًا ۝

او ګرځوو (اچوو) مونږ پر زړونو د دوی پردې له دې خبرې نه چې پوه شي دوی په دغه (قرآن) او (ګرځوو اچوو) مونږ په غوږونو د دوی کوڼوالی (چې قرآن وانه وري)، او کله چې ياد کړې ته رب خپل په قرآن کې يواځې (په توحيد سره بې له يادولو د باطلو معبودانو د دوی)؛ نو بېرته ګرځي دوی په شاګانو خپلو په دې حال کې چې ترهيدونکي وي (له اورېدلو د توحيد نه).

تفسير: ړومبی دغه ذکر وو، چې دوی د رسول الله د صداقت پورې نشي رسېدی، دلته د دې خبرې بيان دی چې د دوی فهم او فکر د قرآن عظيم الشأن تر زده کولو پورې هم نشي رسېدی، يعنې په دغه قرآنکريم کې داسې يو قوي تأثير شته، خو پر کفّارو باندې د هغه اثر ځکه نه لوېږي؛ چې دوی ترې په پرده کې دي، لکه چې لمر ګرد جهان روښانوي، ليکن که کوم سړی په داسې يوه کوټه کې ناست وي، چې تر ځمکې لاندې جوړه شوې وي، او د رڼا د ننوتلو ګرد منافذ او سوري يې بند وي، او د دغې کوټې اوسېدونکی هيڅ له لمره نه وي خبر؛ نو په دغه اعتبار ګواکې د لمر د رڼا اثر هيچېرې نشته.

﴿وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ﴾ يعنې کله چې دوی نه غواړي چې د انتفاع او استفادې په نيت يې واوري، نو ګواکې اورېدونکي نه دي.

تنبيه: دغه چې الله تعالى حجاب او پردې او نور اچولي دي، دغه خو همدغه شيان دي چې دوی د هغه وجود په ډېرې خوښۍ او فخر د خپلو ځانونو لپاره ثابت کړي وو: ﴿وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْٓ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَآ اِلَيْهِ وَفِيْٓ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّمِنْۢ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ﴾ (۲۴ جزء د حم السجده سورت (۵) آيت، (۱) رکوع).

پر آخرت ایمان نه لرل، او له انعام څخه بې فکره کېدل، د الله تعالى له ذکره تښتېدل، پر انبياء الله تمسخر او ملنډې وهل هغه شيان دي؛ چې د «حجاب»، «کنان» او «وقر» صورت اختياروي، او هر کله چې د هر شي خالق الله تعالى دی، نو ځکه د هغو د خلقت نسبت هم ربّ العزّت ته کولی شي.

نَحْنُ اَعْلَمُ بِمَا يَسْتَمِعُوْنَ بِهٖٓ اِذْ يَسْتَمِعُوْنَ اِلَيْكَ وَاِذْ هُمْ نَجْوٰٓى اِذْ يَقُوْلُ الظّٰلِمُوْنَ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا رَجُلًا مَّسْحُوْرًا ﴿٤٧﴾

مونږ ښه عالم يو په هغه غرض چې اوري دوی په سبب د هغه سره کله چې غوږ ږدي دوی تاته، او کله چې دوی مشورې (پټې خبرې) کوي، کله چې وايي ظالمان چې: متابعت نه کوئ تاسې (ای مسلمانانو !) مګر د يوه سړي چې جادو پرې شوی وي.

تفسير: يعني د دې پاک قرآن له اورېدلو څخه د دغو کفّارو مقصود استفاده نه وي، بلکه محض استخفاف او استهزاء يې مطلوب وي، دوی پاک قرآن او ستاسې خبرې يې واورېدې او بېرته لاړل، او پخپلو منځونو کې يې مشورې وکړې، چې د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په نسبت څه شی ښايي ووايو؟ بالآخر دا يې سره غوټه کړه چې پر دغه سړي جادو شوی دی، يعني د جادو په اثر لېونی شوی دی، او دماغ يې له سره په ځای نه دي (العياذ بالله العظيم)، ځينې دلته له «مسحور» څخه د «ساحر» معنى اخيستې ده، يعني ګواکې د ده په خبرو کې د جادو (کوډې) اثر شته.

تنبيه: د «مسحور» له لفظ څخه کوم مطلب چې دوی اخيستی؛ د هغه له نفي څخه دغه نه لازميږي، چې پر نبي عليه السلام باندې به هيڅ قسم سحر په هيڅ يوه درجه په عارضي ډول هم اثر نشي اچولی، دغه آيت مکي دی، او په مدينې منورې کې ځمونږ پر رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې د يهودانو د کوډې کولو د واقعې ذکر په «صحاح» کې شته، چې د هغو اثر تر څو ورځو پورې يواځې دومره قدر ليده کېده، چې په ځينو دنيوي کارونو کې کله ناکله پرې د هېرې (ذهول) آثار ښکارېده.

اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا ﴿٤٨﴾

وګوره (ای محمده !) څرنګه بيانوي دغه کفّار تا لره مثالونه (مثلونه د ساحر، شاعر، کاهن او مجنون) نو ګمراه شول دوی، نو طاقت نه لري دوی د سمې لارې موندلو.

وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ﴿٤٩﴾

او وايي دغه (منکران) آيا کله چې شو مونږ (پس له مرګه) هډوکي او خاورې ميده شوې، آيا په تحقيق به مونږ خامخا بيا راولاړ (او ژوندي) کړی شو په پيدا کولو نوي سره؟.

تفسير: يعني پر تاسې د مسحور، مجنون، شاعر او کاهن د مثالونو لګول خوهرومرو (خامخا) تعجّب راوړونکي دي، خو له هغه څخه لا زيات د تعجّب وړ (لايق) هغه دليل دی چې (معاذ الله) د مسحور او مجنون ثابتولو لپاره دوی وړاندې کول، چې د هغه خلاصه دا ده چې له مرګه وروسته مونږ ګورو چې د انسان بدن ورسستيږي، او تک سپين هډوکي ترې پاتې کيږي، چې لږ موده وروسته هغه هډوکي هم رژيږي، او ذرې ذرې شي، او له خاورو سره ګډوډيږي، آيا کوم هوښيار او پوه سړی داسې کوم تجويز کولی شي، چې دغه هډوکي د وړو او د خاورو بخرکي به بيا سره راټوليږي، او انساني حيات به په دغه منتشره ذراتو کې بيا راځي؟، که دغه نبي د داسې ناممکنې خبرې اخبار ورکوي؛ نو ثابتيږي چې (العياذ بالله) د ده دماغي صحّت په حال نه دی.

قُلۡ كُونُوا حِجَارَةً أَوۡ حَدِيدًا ۝٥٠ أَوۡ خَلۡقًا مِّمَّا يَكۡبُرُ فِي صُدُورِكُمۡ ۚ فَسَيَقُولُونَ مَن يُعِيدُنَا ۖ قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمۡ أَوَّلَ مَرَّةٍ ۚ فَسَيُنۡغِضُونَ إِلَيۡكَ رُءُوسَهُمۡ وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هُوَ ۖ قُلۡ عَسَىٰ أَن يَكُونَ قَرِيبًا ۝٥١

ووايه (ای محمده ! دوی ته) شئ تاسې تيږې (ګټې) يا اوسپنه، يا بل كوم قسم مخلوق له هغه قسمه چې ډېر لوی (او سخت) ښكاري په سينو (زړونو) ستاسې كې (قبلول د هغې حيات لره نو سره له هغه به هم بيا تاسې ژوندي كوو)، نو ژر به ووايي دوی: څوك به بېرته راولي مونږ (او ژوندي به مو كړي پس له مرګه؟)، ووايه (ای محمده !) هغه (ذات به تاسې بيا ژوندي كوي) چې پيدا كړي يې يئ تاسې اول كرت، نو ژر به وخوځوي دوی تاته سرونه خپل (له ډار د استهزاء او تعجبه) او وبه وايي دوی (تمسخراً): كله به وي دغه (بيا ژوندون؟)، نو ووايه (ای محمده ! دوی ته) ښايي چې وي دغه (بيا ژوندون) نژدې.

تفسير: يعني دغه دوړې او د خاورو بخركي خو په هر حال د هغه انساني لاش آثار دي، چې پخوا له دې نه ژوندي وو، او پخپله د خاورو په ذراتو كې د حيات آثار پيدا كېدل دومره لرې او مستبعد نه دي، زه تاسې ته اجازه دركوم چې د هډوكو دوړې نه، بلكه كه ستاسې له لاسه پوره وي؛ تيږې (ګټې) يا اوسپنې وګرځئ، چې د حيات د آثارو له قبلولو څخه بالكل محروم ښكاره شئ، يا كوم بل سخت شی جوړ شئ ! او تجربه وكړئ ! چې د هغوی ژوندي كېدل له اوسپنې او تيږې څخه هم زيات مشكل او سخت په نظر درځي، تر دې چې بيخي مجسم موت وګرځئ، خو سره له هغه هم دغه قادر مطلق جل جلاله ته ستاسې بيا ژوندي كول ډېر سهل او آسان كار دی، يعني هغه ذات چې ړومبی يې تاسې له خاورو يا له نطفې پيدا كړئ، او لا يعقل جماد يې په انساني روح سره فائض كړی دی، آيا اوس په هغه كې قدرت نه دی پاتې چې د خاورې ذرات او د مړي د لاش اجزاء راجمع كړي، او بيا ژوندون ورعنايت كړي؟.

﴿فَسَيُنۡغِضُونَ﴾ الآية ـ يعني له استهزاء او تمسخر څخه خپل سرونه خوځوي، او وايي: هو صاحبه ! په وراسته وو هډوكو او د خاورو په ذرو كې به كله روح وپوكلی شي؟ او كله به مړي له خپلو هديرو (قبرونو) څخه راپورته كيږي د حساب او كتاب لپاره؟.

﴿قُلۡ عَسَىٰ﴾ يعني د قيامت پوره او برابر وقت الله تعالى هيچا ته نه دی ښوولی، هو ! د هغه د راتللو اميد په قريب مستقبل كې تاسې ته ظاهرولی شو، ګواكې د دنيا پاتې عُمر له هغه څخه لږ دی چې تر اوسه تېر شوی دی.

يَوۡمَ يَدۡعُوكُمۡ فَتَسۡتَجِيبُونَ بِحَمۡدِهِۦ وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلًا ۝٥٢

په هغه ورځ كې چې وبولي (الله) تاسې حساب ته؛ نو قبول به كړئ (بلنه د ده په فعلي قبول سره) په دې حال كې چې ثنا ويونكي به يئ الله ته، او ګمان به كوئ (له ډېر هيبته) چې ځنډ (تأخير) نه دی كړی تاسې مګر لږ شانې (په دنيا يا قبر كې).

تفسير: يعني څه مهال (وخت) چې د الله تعالى له طرفه غږ راپورته شي، نو په يوه زوروره بلنه او چغه سره به ټول مړي له ځمكې څخه راوځي، او د حشر په ميدان كې به سره راټوليږي، هيڅوك به د غاړې غړولو توان ونه لري، هر انسان به په دغه وخت كې مطيع او منقاد كيږي، او د الله حمد او ثناء به وايي، او په تلوار سره به حاضريږي، اګر كه كفّارو ته له دغه اضطراري حمد او ثناء څخه كومه فايده نه ور رسيږي، په ځينو رواياتو كې راغلي دي، چې د مؤمنينو پر ژبو به دغه الفاظ وي ﴿الۡحَمۡدُ لِلَّهِ الَّذِيٓ أَذۡهَبَ عَنَّا الۡحَزَنَ﴾

﴿وَتَظُنُّونَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلًا﴾ ـ يعني اوس تلوار كوئ، خو په دغه وخت كې به اندازه وكړئ، چې په دنيا كې مو څه زيات ځنډ نه دی كړی، دغه پنځوس يا سل كاله عمر به د هغو زرګونو كلونو په مقابل كې څه معلوميږي (موضح

القرآن)، ځينې وايي چې: د هولو او خوفونو له شدّته به د دنيا ژوندون دوی ته لږ ښکاري، يا له اولې نفخې څخه تر دويمې نفخې پورې کله چې عذاب نه وي؛ نو دغه منځنی مدت به لږ ګڼي، او داسې به وايي: ﴿مَنۢ بَعَثَنَا مِن مَّرۡقَدِنَا﴾ (د يسين سورت (۴) رکوعه ۵۲ آيت).

وَقُل لِّعِبَادِي يَقُولُواْ ٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ يَنزَغُ بَيۡنَهُمۡۚ إِنَّ ٱلشَّيۡطَٰنَ كَانَ لِلۡإِنسَٰنِ عَدُوّٗا مُّبِينٗا ﴿٥٣﴾

او ووايه (ای محمده !) بندګانو ځما ته چې وايي دې هغه خبرې چې هغه ډېرې غوره دي، بېشکه چې شيطان دښمني اچوي په منځ د دوی کې، بېشکه چې شيطان دی لپاره د انسان دښمن ښکاره (چې له سره په نېکۍ يې روادار نه دی).

رَّبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِكُمۡۖ إِن يَشَأۡ يَرۡحَمۡكُمۡ أَوۡ إِن يَشَأۡ يُعَذِّبۡكُمۡۚ وَمَآ أَرۡسَلۡنَٰكَ عَلَيۡهِمۡ وَكِيلٗا ﴿٥٤﴾

رب ستاسې ښه عالم خبردار دی پر تاسې، که اراده وفرمايي (د رحمت ستاسې) نو رحمت به وکړي پر تاسې (په عطاء د ايمان او قبول د توبې) يا که اراده وفرمايي (د عذابولو ستاسې) نو عذاب به در کړي تاسې ته (په کفر او عصيان سره)، او نه يې لېږلی مونږ ته پر دوی وکيل (ذمه وار).

وَرَبُّكَ أَعۡلَمُ بِمَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۗ وَلَقَدۡ فَضَّلۡنَا بَعۡضَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ عَلَىٰ بَعۡضٖۖ وَءَاتَيۡنَا دَاوُۥدَ زَبُورٗا ﴿٥٥﴾

او رب ستا ښه عالم دی په هغه چې په اسمانونو کې دي او چې په ځمکه کې دي، او خامخا په تحقيق فضيلت ورکړی دی مونږ ځينو انبياوو ته پر ځينو (نورو)، او ورکړی وو مونږ داوود ته زبور.

تفسير: يعنې مونږ سم له خپل محيط علم سره له هر چا سره معامله کوو، هر يو سړی مو چې مناسب وګڼلو؛ د بني آدمانو له منځه هغه ته مو نبوّت ورکړ، شاه صاحب ليکي: «يعنې ځينې نبيان داسې وو چې د خپل امّت له زيات شرارت څخه بالآخر په قهر شول، ستا حوصله مو له هغو څخه زياته کړې ده، او پر ګردو مو فضيلت درکړی دی، لهذا ښايي ستاسې دغه ښه اخلاق له خپلې عالي مرتبې سره موافق وي»، او په خصوصيت سره د داود عليه السلام ذکر يې وکړ؛ ځکه چې هغه دغه دواړه شيان د پوهولو لپاره درلودل، جهاد هم او زبور هم، همغه دواړه خبرې دلته هم شته، قرآن او جهاد.

ځينې وايي چې: دلته يې د (زبور) ذکر کړی دی، د محمد صلی الله عليه وسلم کليه فضيلت او د محمديه امّت د فضل او شرف په لوري يې اشاره فرمايلې ده، ځکه چې د زبور مضامين د محمد صلی الله عليه وسلم پر خاتم الأنبياء توب او د ده د امّت پر أشرف الأممتوب مشتمل وو، ﴿وَلَقَدۡ كَتَبۡنَا فِي ٱلزَّبُورِ مِنۢ بَعۡدِ ٱلذِّكۡرِ أَنَّ ٱلۡأَرۡضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ ٱلصَّٰلِحُونَ﴾ (۱۷ جزء د الأنبياء سورت (۱۰۵) آيت (۷) رکوع)، يعنې د محمد صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلّم مرحومه امّت.

قُلِ ٱدۡعُواْ ٱلَّذِينَ زَعَمۡتُم مِّن دُونِهِۦ فَلَا يَمۡلِكُونَ كَشۡفَ ٱلضُّرِّ عَنكُمۡ وَلَا تَحۡوِيلًا ﴿٥٦﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې وبولئ تاسې هغه معبودان چې ګمان پرې کوئ د معبودانو بې له الله څخه، نو نه لري دوی اختيار د لرې کولو د ضرر له تاسې څخه، او نه د ګرځولو (د ضرر بل چا ته).

تفسير: يعنې الله تعالی خو هغه ذات دی، چې هر چا ته چې اراده وفرمايي؛ عذاب ورکوي، او په هر چا چې اراده وفرمايي؛ مهرباني پرې کوي، په هر چا چې هغومره اراده وفرمايي؛ هغومره پر نورو ورته فضيلت عطاء کوي، د هغه

قدرت کامل او علم يې محيط دی، اوس دې مشرکان هغو خپلو معبودانو ته ناريې کړي، چې دوی يې خپل آلهه ګڼي، يا يې جوړ کړي وي، آيا په هغوی کې يو هم داسې مستقل اختيار لري، چې لږ څه تکليف له تاسې څخه لرې کړی شي؟ يا يې لږ څه سپک کړي؟ يا يې له تاسې څخه لرې او په بل چا وغورځوي؟ نو بيا د داسې ضعيف او عاجز مخلوق معبود درول به څرنګه روا وي؟ !.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ ۚ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا ﴿٥٧﴾

دغه (معبودان) هغه څوک دي چې عبادت يې کوي کفار، لټوي دغه (معبودان د دوی پخپله) طرف د رب خپل ته وسيله (د نژديوالي) چې کوم يو له دوی څخه ډېر نژدې دی الله ته، او اميد لري د رحمت د دغه (الله)، او ويريږي دوی له عذابه د دغه (الله، نو څنګه يې بولئ خدايان)، بېشکه عذاب د رب ستا (وړ او لايق د دې) دی چې ويره ترې وکړی شي (تل ترتله).

تفسير: په «بخاري شريف» کې روايت دی چې څه خلقو د جاهليت په زمانه کې د پيريانو عبادت کولو، هغه پيريان خو مسلمانان شول، ليکن د هغوی عابدين همغسې پخپل جهالت کې قائم پاتې وو، نو د هغوی په حق کې دغه آيت نازل شو.

ځيني وايي: د پيريانو او د پرښتو او د مسيح او عُزير او د نورو ګردو عابدين په دغه کې شامل دي، مطلب يې دا دی: هغه موجودات چې تاسې خپل معبودان او مستعانان ګڼئ او بولئ؛ هغوی پخپله خپل د رب د تقرّب په فکر کې ډېر زيات لويدلي دي، او لټوي يې، د هغوی زيار او کوښښ په همدې کې دی چې د الله تعالى د قربت په حاصلولو کې کوم يو وړاندې او د مخه کيږي؟، د هغوی له منځه هر يو چې زيات مقرّب وي، همغه زيات د الله تعالى د قرب د حاصلولو طالب دی، نو کله چې ستاسې د دغو مجوزه وو معبودانو حال د الله تعالى په مقابل کې داسې وي؛ نو تاسې له خپلو ځانونو سره د دغې خبرې فيصله وکړئ، چې د الله تعالى خوښي او د ده د رضاء د حصول تر کوم ځای پورې ضروري دی، او د غير الله له عبادته نه الله تعالى خوښيږي، او نه هغه خوشاليږي چې تاسې يې عبادت کوئ، او خوښي يې غواړئ.

﴿وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ﴾ الآية ـ يعني سره له انتهايي قُرب د هغوی ګرد اميدونه محض د الله تعالى پر لطف او مهرباني دي، او دوی تل تر تله د الله تعالى له عذابه ويريږي او لړزيږي، او په دې ښه پوهيږي چې د هر قسم نفعې رسونه او د ضرر دفعه د همغه پاك الله په قبضه او اختيار کې ده.

وَإِن مِّن قَرْيَةٍ إِلَّا نَحْنُ مُهْلِكُوهَا قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ أَوْ مُعَذِّبُوهَا عَذَابًا شَدِيدًا ۚ كَانَ ذَٰلِكَ فِي الْكِتَابِ مَسْطُورًا ﴿٥٨﴾

او نشته هيڅ کلی (يا ښار د ځمکې په مخ کې) مګر چې مونږ هلاك کوونکي (مړه کوونکي د اهل) د هغه يو پخوا له ورځې د قيامت يا په عذابوونکي يو (د اهل) د هغه په عذاب سخت سره، دی دغه حکم په کتاب (لوح محفوظ) کې ليکلی شوی.

تفسير: د دغه آيت مطلب په څو ډوله اخيستی شي:

(الف): د دنيا هر يو کلی او ښار به د هغوی د اوسيدونکو د عظيم الشانو ګناهونو په بدل کې پخوا له قيامته په مستأصلو عذابونو بيخي تباه او خراب شي، که د دوی ګناه انتهايي درجې پورې نه وي رسېدلې، نو د دويمې درجې

د جرائمو په سزا کې د عمومي هلاکت څخه ښکته بل کوم سخت آفت پر هغه نازل شي، باقي داسې کلی او ښار به چېرې وي چې له ازله تر ابده پورې به يې ګناه نه وي کړي؟ او نه په کوم آفت کې به اخته شوی نه وي؟.

(ب): پخوا له قيامته ضروري ده چې هر يو کلي او ښار ته د هغه طبيعي موت وروليږلی شي، او وران کړی شي، يا په کوم آفت او بلاء کې مبتلا شي، پر هغه طبيعي موت چې د تعذيب له رنګه تش وي د (هلاک) د لفظ اطلاق له قرآنه او حديث ثابت دی: ﴿حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا﴾ (۲۴ جزء د المؤمن سورت (۳۴) آيت (۴) رکوع)، وفي الحديث: «کلّما هلک نبيٌّ جاء نبيّ آخر».

(ج): د کفّارو کلي او ښارونه به يا پخوا له قيامته پخپلو درنو ګناهونو په بدل نابود او لري کړل شي، يا به په کوم نه کوم بل وخت کې د سختو عذابونو خوند وڅکي.

په هر حال هره معنی چې ترې واخيسته شي؛ له دغه آيت څخه مقصود تحذير دی، ګواکې هغه يې چې پخوا فرمايلي وو: ﴿اِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُوْرًا﴾ دلته د هغه د وقوع خبر ورکړی شوی دی.

وَمَا مَنَعَنَآ اَنْ نُّرْسِلَ بِالْاٰيٰتِ اِلَّآ اَنْ كَذَّبَ بِهَا الْاَوَّلُوْنَ ۭ وَاٰتَيْنَا ثَمُوْدَ النَّاقَةَ مُبْصِرَةً فَظَلَمُوْا بِهَا ۭ وَمَا نُرْسِلُ بِالْاٰيٰتِ اِلَّا تَخْوِيْفًا ﴿۵۹﴾

او نه دی منع کړی مونږ لره هيڅ شيز له دې نه چې وليږو هغه معجزې (چې دوی يې غواړي) مګر (دې خبرې) چې تکذيب کړی وو په هغو معجزو پخوانيو (کفّارو نو هلاک مو کړل)، او ورکړې مو وه (قوم) د ثمود ته اوښه ښکاره معجزه؛ نو ظلم وکړ (ثموديانو په ځانونو خپلو) په سبب د (تندې او زخمي کولو او اهلاک د) هغې، او نه ليږو مونږ (دغه فرمايشي) معجزې مګر لپاره د ويرولو.

تفسير: په حديث کې دي چې د مکې معظمې خلقو څمونږ له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه معجزې وغوښتې، مثلاً دغه چې د (صفا) غر راته سره زر کړه ! يا دغه غرونه څمونږ له شاوخوا څخه لرې کړه ! او د زراعت قابله سمه هواره ځمکه ترې سازه کړه ! و غير ذالک، که داسې دې وکړه؛ نو مونږ ستا دغه خبرې منو، د دوی په ځواب کې دغه آيت نازل شو، يعنې د دغې فرمايشي معجزو ښوول الله تعالی ته له سره مشکل نه دي، ليکن پخوانيو خلقو ته سره له دې چې سم د هغو له غوښتنو سره د قدرت هسې معجزې ورښوولې وې، خو هغوی نه يواځې ايمان رانه وړ، بلکه په سرکښۍ کې يې لا پسې ترقي وکړه، آخر له سنت الله سره موافق د هغه نتيجه داسې شوه، چې هغوی بيخي سره مستأصل او فنا او په هلاک ورسېدل، اوس که ستاسې له احوالو هم ظاهريږي، چې تاسې بيا هم منونکي نه يئ، نو له سنت الله سره سم د دې نتيجه هم ښايي هم هغه استيصال او کلّي هلاک وي، نو کوم حال چې د پخوانيو شوی دی؛ همغه به ستاسې هم وشي، ليکن د الله تعالی حکمت د دې مقتضي نه دی چې تاسې هم د هغوی په شان هلاک کړي، نو ځکه د فرمايشي معجزو لېږل موقوف کړی شوي دي.

﴿وَاٰتَيْنَا ثَمُوْدَ النَّاقَةَ﴾ الآية ـ د (ثمود) قوم له صالح عليه السلام څخه غوښتنه کړې وه چې د دغه غره له هغې غټې تيږې څخه يوه اوښه راوباسه !، پاک الله هغه اوښه له هغې پرښې (ګټې) څخه ورويسته، مګر د دې په ځای چې هغوی د داسې فرمايشي معجزې له ليدلو څخه خپلې سترګې غړولې وی، او قلبي بصيرت يې حاصل کړی وی، بالعکس د ظلم او عداوت لپاره يې ملاوې وتړلې، لکه چې هغه اوښه يې ووژله، او د صالح عليه السلام د شهادت په فکر او توطيه (غور) کې هم سره سم بوخت (مشغول) شو، بالآخر د هغوی عاقبت او انجام څرنګه چې واقع شو؛ هغه ګردو ته ښکاره او معلوم دی، او د هغه د بيانولو ضرورت نه دی پاتې، دغه يې د ﴿اَنْ كَذَّبَ بِهَا الْاَوَّلُوْنَ﴾ يوه نمونه وروړاندې کړه.

﴿وَمَا نُرۡسِلُ بِٱلۡأٓيَٰتِ إِلَّا تَخۡوِيفٗا﴾ الآية ـ يعنې هدايت د معجزاتو پر ليدلو موقوف نه دى، د فوق العاده وو معجزاتو د لېږلو څخه دغه مقصود وي؛ چې د قاهره قدرت له ليدلو څخه خلق د الله تعالى څخه وويرېږي، او له وېرې د پاک الله په طرف متمائل شي، كه دغه مقصد حاصل نشي، او في الحال د هغه قوم تباه كول هم مصلحت نه وي، نو د تشو فرمايشونو د پوره كولو څخه څه فائده لاس ته راځي؟ باقي د عمومي تخويف او انذار لپاره د هغو آيتونو او معجزاتو لېږل چې مصلحت دى؛ هغه برابر لېږلې شوي دي.

وَإِذۡ قُلۡنَا لَكَ إِنَّ رَبَّكَ أَحَاطَ بِٱلنَّاسِۚ وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلنَّاسِ وَٱلشَّجَرَةَ ٱلۡمَلۡعُونَةَ فِي ٱلۡقُرۡءَانِۚ وَنُخَوِّفُهُمۡ فَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا طُغۡيَٰنٗا كَبِيرٗا ﴿٦٠﴾

او (ياد كړه) هغه وخت چې وويل مونږ تاته چې بېشكه رب ستا احاطه كړېده پر مخلوقاتو (په علم او قدرت خپل سره)، او نه ده ګرځولې مونږ (نظاره ښوونه) هغه چې ښوولې مو وه تا ته (د كائناتو په نسبت په سترګو سره په شپه د معراج كې) مګر ازموينه لپاره د خلقو د (مكې)، او (همدارنګه فتنه ګرځولې ده مونږ) هغه ونه چې پرې لعنت كړى شوى دى په قرآن كې، او ويروو مونږ دوى؛ نو نه زياتوي دوى ته (دغه وېرول) مګر طغيان سر كښي لويه.

تفسير: ښايي چې د رسول الله مبارك په خيال كې دغې خبرې خطور كړى وي، چې د دغو فرمايشي معجزاتو د نه ښودلو څخه به كفّارو ته د خندا او طعن موقع په لاس ورشي، او داسې به وايي: كه دى په رښتيا سره نبي وى؛ نو ځمونږ له غوښتنې سره به يې سم معجزې راښوولې وى، نو ځكه يې مطمئن كړ، چې ستا د رب علم او قدرت ګرد خلق احاطه او راګېر كړي دي، او هيڅوک د ده له علم څخه د باندې وتلى نشي، او نه د ده د قدرت له ما تحت بل چېرې خوځېدى شي، او ګرد د ده په واک او قبضه كې دي، تاسې د دوى دغو طعنو او تشنيعو ته له سره غوږ مه ږدئ او مه التفات ورته كوئ ! دوى ستاسې يو شى نشي خرابولى، تاسې په خپل كار كې مشغول او لګيا اوسئ ! او د دوى فيصلې بيخي مونږ ته راپرېږدئ، مونږ ته ډېر ښه معلوم دي، چې دوى سره د فرمايشي معجزو د ليدلو هم ستاسې د خبرو منونكي نه دي، او وروسته له هغه ځمونږ له سزا او پوښتنې څخه خلاصيدونكي يا ترې چېرې تښتېدونكي نه دي، او په دې هم علم لرو، چې له دغو خلقو څخه كوم يو اوس سمدلاسه د تباه كېدلو وړ (لايق) دى؟ او د كومو خلقو باقي پرېښودل مصلحت دى؟ لهذا تاسې خپل ځان په دغو جګړو او جنجالونو كې له سره مه اخته كوئ ! دغه ګرد ځمونږ تر محاصرې لاندې دي، بالآخره دوى به مسلمانېږي.

﴿وَمَا جَعَلۡنَا ٱلرُّءۡيَا ٱلَّتِيٓ أَرَيۡنَٰكَ﴾ رؤيا يعنې نظاره يا ښوونه، او له هغې څخه مراد د معراج د شپې هغه ننداري دي؛ چې د هغو په بيان سره د خلقو ازموينه وشوه، صادقانو د هغو له اورېدلو څخه پرې باور وكړ، او ويې منل، او بالعكس مكذّبينو او ناقصانو د هغو تكذيب وكړ.

﴿وَٱلشَّجَرَةَ ٱلۡمَلۡعُونَةَ فِي ٱلۡقُرۡءَانِۚ﴾ يعنې د (زقوم ونه) چې په قرآن كې ويلې شوې ده، چې هغه به د دوزخيانو خوراک وي، د ايمان لرونكو د يقين موجب شوه او د منكرانو د شک او ريب سبب وګرځېده، او ويې ويل چې: د دوزخ په اور كې به ونه څرنګه زرغونېږي؟ دغه هم يوه ازموينه وه، له دغو دواړو مثالونو څخه اندازه وكړئ چې د خوارقو په تصديق كې د طبائعو احوال څرنګه دي.

﴿وَنُخَوِّفُهُمۡ فَمَا يَزِيدُهُمۡ إِلَّا طُغۡيَٰنٗا كَبِيرٗا﴾ يعنې هغه زړونه چې د الله تعالى له وېرې څخه تش وي، له ويرولو څخه هم نه ويرېږي، بلكه لا زيات شرارتونو كې پرمختګ او ترقي كوي، له هغوى څخه د فرمايشي معجزاتو په ليدلو سره د حق د قبلولو هيله او اميد لرل چټي (بېكاره) او بې موقعه دى.

وَإِذۡ قُلۡنَا لِلۡمَلَٰٓئِكَةِ ٱسۡجُدُواْ لِأٓدَمَ فَسَجَدُوٓاْ إِلَّآ إِبۡلِيسَ قَالَ ءَأَسۡجُدُ لِمَنۡ خَلَقۡتَ طِينٗا ﴿٦١﴾

او (ياد كړه) هغه وخت چې وويل مونږ پرښتو ته چې سجده وكړئ تاسې آدم ته (تعظيماً)؛ نو سجده وكړه (ټولو) مګر يوازې ابليس (سجده ونه كړه)، وويل (ابليس په ځواب د الله كې): آيا سجده وكړم هغه چا ته چې پيدا كړى دى تا له خټې.

تفسير: دغه قصه په څو ځايونو كې تېره شوې ده، دلته په هغې باندې تنبيه وركول مقصود دي، چې د الله تعالى د حكم بې له وړاندې وروسته كولو څخه منل (د پرښتو له طرفه)، او په هغه كې شبهې پيدا كول د شيطان كار دى، دغه كفّار هم د همغه شيطان د اعمالو متابعت كوي، چې په خبرو كې يې كاږه بحثونه كول، مګر په ياد يې ولرئ چې د دوى عاقبت او انجام هم همغسې كېدونكى دى چې د دوى د امام او مشر لعين ابليس انجام هم همغسې كېدونكى دى.

قَالَ أَرَءَيۡتَكَ هَٰذَا ٱلَّذِي كَرَّمۡتَ عَلَيَّ لَئِنۡ أَخَّرۡتَنِ إِلَىٰ يَوۡمِ ٱلۡقِيَٰمَةِ لَأَحۡتَنِكَنَّ ذُرِّيَّتَهُۥٓ إِلَّا قَلِيلٗا ﴿٦٢﴾

وويل (ابليس) خبر راكړه ماته دا (سړى) چې بهتر كړى دى دى په ما باندې؛ قسم دى كه وروستى دې كړم تر ورځې د قيامت پورې نو خامخا به زه بېخ وباسم هرومرو د اولادې د ده مګر لږ (د دوى چې ستا په عصمت او حمايت كې دي).

تفسير: يعنې لږ څه به يې پر بېړدم، او باقي ګرد به يې مسخر او د خپل ځان تابع وګرځوم، لكه چې پر آس د ملونې (ځلونې) او قيزې په وسيله سړى لاس مومي، نو بيا دغه انسانان چې ځما په مقابل كې دومره ضعيف او كمزوري دي؛ نو تا دوى ته پر ما ولې لويي او فضيلت بخښلى دى؟ آيا داسې كول هم جائز دي؟ حال دا چې زه غوره يم له ده، ځكه چې آدم له خاورې پيدا دى او زه له اوره.

قَالَ ٱذۡهَبۡ فَمَن تَبِعَكَ مِنۡهُمۡ فَإِنَّ جَهَنَّمَ جَزَآؤُكُمۡ جَزَآءٗ مَّوۡفُورٗا ﴿٦٣﴾

(نو) وفرمايل (الله) چې ځه نو هر چا چې متابعت وكړ ستا له دوى نه؛ نو بېشكه دوزخ جزاء ستاسې ده جزاء پوره.

وَٱسۡتَفۡزِزۡ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُم بِصَوۡتِكَ وَأَجۡلِبۡ عَلَيۡهِم بِخَيۡلِكَ وَرَجِلِكَ وَشَارِكۡهُمۡ فِي ٱلۡأَمۡوَٰلِ
وَٱلۡأَوۡلَٰدِ وَعِدۡهُمۡۚ وَمَا يَعِدُهُمُ ٱلشَّيۡطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا ﴿٦٤﴾

او وخوځوه (راګېر كړه) هغه څوک چې طاقت دې رسيږي پر هغه باندې له دوى نه په غږ (بلنه) خپله سره (فساد ته)، او راكاږه پر دوى سواره خپل او پياده خپل، او شريک شه له دوى سره په مالونو كې او په اولادونو كې، او وعده كوه له دوى سره (د دروغو)، او نه كوي وعده له دوى سره شيطان مګر (په) مكر باطل (او فريب سره چې خطا ورته ثواب ښكاروي).

تفسير: يعنې هغه غږ چې د الله تعالى د عصيان په لوري خلقو ته دعوت او بلنه كوي، له دې نه په زړونو كې وسوسې غورځول مراد دي، مزامير (ساز او آواز) هم په دې كې داخلېدى شي.

د پياده او سورو له راكاږلو څخه دا مطلب دى چې خپل ګرد زور او قوّت ولګوه، او په پوره قدرت او طاقت سره خپلو لښكرو ته د پرمختګ (وړاندې تلو) امر وركړه، چې د الله تعالى په معصيت كې ګرد جنګېدونكي شيطانان دي، كه سواره دي يا پلي (پياده)، جني وي، كه انسي، پخپلو شيطاني چارو بوخت او لګيا شئ !؟.

﴿وَشَارِكْهُمْ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ﴾ يعنې په زړه کې دې ارمان مه ساته، او دوی ته پر هر شانې چې زړه دې غواړي ترغيب ورکړه، چې په خپلو مالونو او اولادونو کې هم تا ته برخې درکړي، يعنې دغه شيان په ناجائزو طريقو سره حاصل کړئ، او په ناجائزو کې يې ولګوئ.

﴿وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَٰنُ إِلَّا غُرُورًا﴾ يعنې چې شيطان انسان ته زرغونه باغونه ورښيي، د ده په مکر او فريب او پلمو (تدبيرونو) کې راتلل د احمقانو کار دی، شيطان ګرد مواعيد پر دغابازۍ او فريب مبتني دي، لکه چې په قيامت کې دی پخپله به هم اقرار کوي: ﴿وَوَعَدْتُكُمْ فَأَخْلَفْتُكُمْ﴾ (د ابراهيم سورت (۴) رکوع، (۲۲) آيت، (۱۳) جزء).

إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ ۚ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ وَكِيلًا ﴿٦٥﴾

بېشکه (خاص) بندګان ځما چې دي نشته تاته (ای شيطانه) پر دوی هيڅ قسم غلبه حکومت قدرت، او کافي دی رب ستا (ای شيطانه) وکيل ساتونکی (د خالصو بندګانو خپلو له شره ستا).

تفسير: يعنې هر څوک چې پر الله تعالی اعتماد او توکل وکړي، هغه د ده کار جوړوي، او د شيطان له لومو او چمبو (دامونو) څخه يې راوباسي.

رَّبُّكُمُ الَّذِي يُزْجِي لَكُمُ الْفُلْكَ فِي الْبَحْرِ لِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ ۚ إِنَّهُ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٦٦﴾

رب ستاسې هغه (قادر مطلق ذات) دی چې چلوي تاسې ته بېړۍ (جهازونه) په بحر کې لپاره د دې چې ولټوئ (رزق او روزي) له فضله د ده څخه، بېشکه دغه (الله) دی پر تاسې ډېر مهربان.

تفسير: دغه يې د الله تعالی د کار جوړولو يوه نمونه راوړاندې کړه، چې په هغه کې يو مشرک هم پر داسې اقرار کولو مجبور کيږي؛ چې له ماسوا الله څخه بل هيڅوک د ګردو مهمّاتو جوړوونکی او وکيل نشي کېدی.

علی الأکثر په لوی قرآن کې روزي يې په فضل سره تعبير فرمايلې ده، د فضل معنی زيادت دی، ځکه چې د مسلمانانو دغه بندګي او عبادت خو د آخرت لپاره دی، او دنيوي فوائد دوی ته محض د امتحان او ازمېښت لپاره ورکول کيږي.

وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَن تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ ۖ فَلَمَّا نَجَّاكُمْ إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ ۚ وَكَانَ الْإِنسَانُ كَفُورًا ﴿٦٧﴾

او کله چې ورسيږي تاسې ته سختي په بحر کې (او ويرېږئ له غرقه)؛ ورک شي (له فکره) هغه کسان چې يې بلئ (او عبادت يې کوئ) مګر يواځې دغه (الله) ته (زاري او عبادت کوئ)، نو کله چې ومو ژغوري (بچ مو کړي) تاسې (له غرقه او ومو رسوي) وچې ته؛ نو بيا څنګ کوئ (له توحيده)، او دی انسان لوی ناشکره (په نعمتونو د رب خپل).

تفسير: يعنې همدا چې انسان له مصيبت څخه نجات ومونډ؛ نو خپل حقيقي محسن بيخي له ياده وباسي، او هيروي يې، څو دقيقې (منټه) وړاندې د سيند په چپو او د بحر په امواجو کې پرله پسې د الله تعالی په يادونه کې وو، همدغه چې د ګودر پر وچه باندې يې پښه ولګېده؛ نو بيا بيخي بې فکره کيږي، او هغه ګردې پېښې يې هېرې شي، نو له دې نه لويه ناشکري او احسان هېرول به نور څه وي؟.

أَفَأَمِنتُمْ أَن يَخْسِفَ بِكُمْ جَانِبَ الْبَرِّ أَوْ يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ وَكِيلًا ﴿٦٨﴾

نو آیا په امن (مطمئن او بې ویرې) یئ تاسې له دې نه چې ډوب کړي تاسې په یو طرف د ځمکې وچې کې؟ یا ولیږي پر تاسې سخت باد ورروونکی د وړو کاڼو؟ بیا ونه مومئ تاسې د خپل ځان لپاره کوم ساتونکی.

تفسیر: یعنې د بحر په څنډو (غاړو) په وچه کې مو ډوب کړي، مثلا چې زلزله راشي او په ځمکه کې چاودې پیدا شي، او د قارون په شان په ځمکه کې ښخ کړی شئ! خلاصه یې دا چې ستاسې اهلاک د سیند په موجونو او چپو پورې موقوف نه دی، هر چېرې چې الله تعالی اراده وفرمایي؛ هلته مو وژني.

أَمْ أَمِنتُمْ أَن يُعِيدَكُمْ فِيهِ تَارَةً أُخْرَىٰ فَيُرْسِلَ عَلَيْكُمْ قَاصِفًا مِّنَ الرِّيحِ فَيُغْرِقَكُم بِمَا كَفَرْتُمْ ثُمَّ لَا تَجِدُوا لَكُمْ عَلَيْنَا بِهِ تَبِيعًا ﴿٦٩﴾

آیا په امان کې یئ تاسې (بلکه مأمون مه اوسئ) له دې نه چې بیا راننه باسي تاسې (الله) په دې (بحر) کې بیا دویم ځلي، نو ناڅاپه راولیږي پر تاسې ماتوونکی (د هر څیز) سخت باد، نو غرق به کړي تاسې په سبب د کفر (شرک) ستاسې، پس د هغه بیا به نه مومئ د خپلو ځانونو لپاره پر مونږ په سبب د هغه غرق پوښتېدونکی (راپسې ګرځېدونکی).

تفسیر: یعنې له الله تعالی څخه څوک پوښتنه کولی شي؟ یا د چا له واکه او توانه دغه کار پوره دی، چې د پاک الله تعقیب وکړي؟.

وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ وَحَمَلْنَاهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَىٰ كَثِيرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيلًا ﴿٧٠﴾

او خامخا په تحقیق ډېر عزت ورکړی دی مونږ اولادې د آدم ته، او سواره کړي مو دي دوی پر مرکوباتو باندې په بر (وچه) کې، او په بحر (دریاب) کې، او رزق روزي مو ورکړې ده دوی ته له طیّباتو پاکیزه وو شیانو، او غوره کړي مو دي دوی پر ډېرو له هغه چا چې پیدا کړي مو دي په غوره کولو (ډېرو) سره.

تفسیر: یعنې انسان ته یې د صورت حسن، نطق، تدبیر، عقل، حواس او نور ور عنایت فرمایلي دي، چې د هغه په وسیله په خپل دنیوي او اخروي مضارو او منافعو باندې پوهیږي، او د ښو او بدو په منځ کې سره تفریق کولی شي، په هر طرف کې یې د پرمختګ او ترقۍ لارې ورته پرانستلي دي، نور مخلوقات تر خپل واک لاندې راوستلی شي، او خپلې چارې ترې اخیستی شي، په وچه کې د حیواناتو پر شا او پر نورو راز راز نواقلو او وسائلو سفر کوي، په سیندونو او بحرونو کې پر بېړیو او جهازونو او نورو نقلیه وو وسائلو سره بې تکلّفه تګ راتګ مسافرت کولی شي، له قسماقسم ښو مأکولاتو، مشروباتو، ملبوساتو، کورونو او تعمیراتو او د دنیوي نورو وسائلو او وسائطو او د هوسایۍ (آرام) او هستوګنې د هر راز لوازمو او لواحقو څخه منتفع او ګټور کیږي، د همدغو انسانانو لوی پلار آدم علیه السلام یې د پرښتو «مسجود له» وګرځاوه، او د دوی آخري رسول الله محمد صلی الله علیه وسلم یې د ګردو مخلوقاتو سردار غوره کړ.

يَوْمَ نَدْعُوا كُلَّ أُنَاسٍ بِإِمَامِهِمْ فَمَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ فَأُولَٰئِكَ يَقْرَءُونَ كِتَابَهُمْ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٧١﴾

او (ياد كړه) هغه ورځ چې وبه بولو (په نامه سره) هر امّت سره د انبياوو او مشرانو د دوی، نو هر هغه چا ته چې ور كړه شوه اعمالنامه د ده په ښي لاس د ده كې نو دغه (أصحاب اليمين) لولي به اعمالنامې خپلې (په ډېرې خوشالۍ سره) او ظلم به ونه كړی شي (پر دوی) په اندازه د يو نري تار (چې په منځ د زړي د خرماوو كې وي).

**تفسير:** د قيامت په ورځ به هره فرقه سره له هغه څيزه حاضرېږي چې ده به د هغه پيروي او متابعت كولو، مثلا مؤمنين له نبي يا له كتاب يا له ديني مشره سره، او كفّار له مذهبي مشر، او لوی شيطان او باطلو معبودانو سره چې فرمايلي يې دي: ﴿وَجَعَلْنَاهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى النَّارِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا يُنْصَرُونَ﴾ (۲۰ جزء د القصص سورت (۴۱) آيت (۴) ركوع).

او په حديث كې راغلي دي: «تتبع كل أمة ما كانت تعبد»، په دغه وخت كې د ګردو انسانانو أعمالنامې به هغوی ته رسيږي، د ځينو اعمالنامې به د مخې له طرفه په ښي لاس كې او د ځينو به د شا له طرفه په كيڼ لاس كې وررسيږي، ګواكې دغه يو حسّي علامت دی د مقبوليت او مردوديت لپاره.

﴿أَصْحَابُ الْيَمِينِ﴾ يعنې په ښي لاس كې د عملنامې اخيستونكي، دوی به هغه كسان وي چې په دنيا كې يې حق قبول كړی دی، او خپل فطري شرافت او انساني كرامت يې باقي ساتلی وي، همغسې چې هغوی په دنيا كې سره له پوهېدلو او سنجولو (غور كولو) كار كړی وي، او خپل وړاندې وروسته يې ليدلي وي، په آخرت كې هم همغه احتياط د دوی په كار ورځي، په دغه ورځ كې به دوی له حده زيات خوښ او خوشاله وي، او په ډېر سرور او انبساط سره به خپلې اعمالنامې لولي، او نورو ته به هم وايي: ﴿هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ﴾ (۲۹ جزء د الحاقه سورت (۱۹) آيت (۱) ركوع) «راشئ ځما دغه كتاب ولولئ».

باقي نور خلق يعنې ﴿أَصْحَابُ الشِّمَالِ﴾ د هغوی احوال په وروستني آيت كې بيان فرمايلي شوي دي، ځينې د (امام) له لفظه خپله اعمالنامه مرادوي، ځكه چې هلته به خلق د همدغې أعمالنامې پسې ورځي (لنډه يې دا چې په آخرت كې به له هر چا سره همغه معامله وكړه شي، چې وړ او مستحق يې وي، او ظلم به ونه كړی شي پر دوی باندې په اندازه د هغه نري تار چې په منځ د زړيو د خرماوو كې وي.

وَمَنْ كَانَ فِي هَٰذِهِ أَعْمَىٰ فَهُوَ فِي الْآخِرَةِ أَعْمَىٰ وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٧٢﴾

او هر څوک چې وي په دغه (دنيا) كې ړوند (له پېژندلو د حقه) نو هغه به په آخرت كې هم ړوند وي (له لارې د خلاصې) او ډېر لرې به وي (د نجات او برې) له لارې (د ړندو په شان).

**تفسير:** يعنې دلته د هدايت د لارې له ليدلو څخه ړانده پاتې وي، او هلته په آخرت كې د جنت د لارې له ليدلو څخه هم ړانده او ډېر لرې ترې پاتې كيږي (موضح القرآن)، دغه د «أصحاب اليمين» په مقابل د «أصحاب الشمال» ذكر دی، ځينو د ﴿وَأَضَلُّ سَبِيلًا﴾ مطلب داسې اخيستی دی، چې په دنيا كې د مافات تلافي ممكنه ده، ولې په آخرت كې له هغه څخه هم ډېر لرې ولوېدل، ځكه چې په قيامت كې د تدارک او تلافي هيڅ امكان نشته.

وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهُ وَإِذًا لَاتَّخَذُوكَ خَلِيلًا ﴿٧٣﴾

او په تحقيق شان دا دی چې نژدې وو (كفّار) چې واړوي تا له هغه (قرآن) څخه چې وحي كړې ده مونږ تا ته لپاره د دې چې وتړې ته پر مونږ بې له دې قرآنه بل څه، او (كه متابعت دې كړی وی تا د دوی؛ نو) په دغه وخت كې به خامخا نيولی به يې وې دوی ته دوست.

تفسیر: له دغو باطني ړندو څخه ځیني شریران خو هغه کسان دي، چې پخپله پر سمه لاره نه راځي، بلکه نور غټې غټې سترګې لرونکي پوهان او هوښیاران هم غواړي چې وغولوي او تېر باسي، لکه چې د مکې معظمې د کفارو دغې بې حیایي او جسارت ته وګورئ چې غواړي تاسې هم دغه طرف ته متمائل کړي، چې د الله تعالی هغه وحي او احکام چې پر تاسې یې لیږلي دي، د هغو یوه برخه تاسې د دوی له خاطره (معاذ الله) پر پرېدئ یا یې بدل کړئ، کله د حکومت، کله د دولت، کله د ښکلیو پیمخو جونو (جینکو) تطمیع او تشویق به یې دوی ته وروړاندې کولو، کله به یې ویل چې: مونږ به له ځرمې (سېلمې) ستا تابع کیږو؛ که چېرې له قرآن څخه تش همغه برخه لرې کړئ چې د شرك او بت پرستی په نسبت تردید کوي، که په فرض محال (العیاذ بالله) تاسې داسې وکړئ؛ نو خامخا هغوی به تاسې خپل ټینګ دوست په شان منلي وئ، لیکن ستاسې جواب د هغوی په مقابل کې داسې وو: «که تاسې لمر او سپوږمۍ له اسمانه راښکته کړئ، او یوه یې ځما په یوه موټي کې بل یې ځما په بل موټي کې راکړئ، خو بیا هم محمد صلی الله علیه وسلم د هغه څیز پر ښنودونکی نه دی چې پاك الله د هغه لپاره مبعوث کړی دی، څو یې تر پایه ونه رسوي، یا خپل سر پرې جار (قربان) نه کړي».

وَلَوْلَآ أَن ثَبَّتْنَٰكَ لَقَدْ كِدتَّ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْـًٔا قَلِيلًا ﴿۷۴﴾ إِذًا لَّأَذَقْنَٰكَ ضِعْفَ ٱلْحَيَوٰةِ وَضِعْفَ ٱلْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا ﴿۷۵﴾

او که نه وی مونږ ټینګ کړی ته (په حق باندې د عصمت)؛ نو خامخا په تحقیق نژدې شوی وې ته چې میلان دې کړی وې دوی ته څه لږ. (او که لږ څه میل دې کړی وی؛) نو په دغه وخت کې به خامخا په تحقیق څکلی به مو وی تا ته دوچند عذاب د ژوندون (په دنیا کې) او دوچند عذاب د مرګ (په آخرت کې)، بیا به نه وه موندلې تا د ځان لپاره پر مونږ باندې مدد کوونکی (په دفع د عذاب کې).

تفسیر: ﴿تَرْكَنُ﴾ له «رکون» څخه دی، چې ادنی راښکته کېدلو او د قلب ډېر خفیف میلان ته وایي، له دې سره د ﴿شَيْـًٔا قَلِيلًا﴾ قید یې زیات کړ، نو له ادنی ځنې ډېر ادنی مرتبه ترې مراده شوه، بیا ﴿لَقَدْ كِدتَّ﴾ یې وفرمایه، او د هغه وقوع یې لا لږ کړ، یعني که دغه خبره نه وی چې ته معصوم نبي یې، چې ستا د عصمت ساتنه الله تعالی پخپل خصوصي فضل سره کوي؛ نو د دغو چالاکو شریرانو د فریب بازی څخه ډېر لږ څه هغه طرف ته به ستا قلبي میلان ورنژدې کېده، لیکن د انبیاوو علیهم السلام د عصمت تکفّل الله تعالی فرمایلی دی، نو ځکه دغومره یو خفیف تمایل هم په تا کې ونه موندل شو.

له دې نه ظاهریږي چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په وجود کې د فطري تقوی قوّت ډېر مضبوط او کلك او بیخي له تزلزل څخه عاري وو، (که قاري دغه پاس آیات په دقّت سره بیا ولولي؛ او په کې ښه دقیق او ځیر شي؛) نو په دغو کې هم د رسول کریم صلی الله علیه وسلم د فضل او شرف اظهار په نهایت لطیف بیان سره مقصود دی.

مقربینو ته همغسې چې انعامات ډېر دي، ډېر مصائب او بلیّات هم د دوی په برخه کې راځي، او د دوی پر خورا ډېر لږ وړو کې غلطی یا قصور باندې هم سخت عتاب واردیږي، لکه چې ځمونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم مطهّراتو ازواجو ته فرمایلي دي: ﴿يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأْتِ مِنكُنَّ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُضَٰعَفْ لَهَا ٱلْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ﴾ (۲۱ جزء د الأحزاب سورت (۳۰) آیت (۴) رکوع).

نو دغه یې راوښود چې د دوی مرتبه کومه معمولي مرتبه نه ده، که په فرض محال سره له ادنی څخه ادنی کومه غلطي وي؛ نو په دنیا کې او په برزخ کې او په آخرت کې دوچنده عذاب ورڅکولی کیږي، هر مؤمن لره ښایي چې د دغو آیتونو د تلاوت په وخت کې په ګونډو او ځنګنو شي، او په انتهایي خوف او خشیت سره د الله تعالی د جلال او

جبروت په شان کې غور وکړي ! او همغه دعا دې وکړي چې پخپله به رسول الله مبارک کوله: «اللّهمّ لا تكلني إلى نفسي طرفة عين» «ای إلها ! د سترګې د يوه رپولو په اندازه مې هم خپل نفس ته مه خوشې کوه !»، يعنې تل مې همدغه ته حفاظت او ساتنه وکړه ! او پخپل کفالت کې مې وساته !.

وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا وَإِذًا لَّا يَلْبَثُونَ خِلَافَكَ إِلَّا قَلِيلًا ۝٧٦

او بېشکه شان دا دی چې نژدې وو (دغه مکې والا او غوښتل يې) چې خامخا وخوځوي تا له ځمکې (د مکې يا د مدينې) لپاره د دې چې وباسي تا له دغې (ځمکې په مکر او فرېب سره) او په دغه وخت کې (که ته يې ايستلی وې)، نو درنګ به نه وی کړی وروسته له (ايستلو) د تا نه مګر لږ (مدّت).

تفسير: يعنې غواړي چې تاسې په تنګ کړي او ومو ويروي، او له معظّمې مکې څخه مو د باندې وباسي، ليکن دوی دې دغه خبره هم په ياد ولري، که هغوی داسې وکړه؛ نو دوی به پخپله هم تر ډېرو ورځو پورې دلته نشي اوسېدلی، لکه چې همداسې هم وشو، چې د دوی همدغه ظلم، ستم او تيري د دې خبرې سبب شوه چې محمد صلی الله عليه وسلم له معظّمې مکې نه منوّرې مدينې ته هجرت وفرمايه، خو تر دې يو نيم کال وروسته د مکيانو لوی سرداران او مشران له خپلو کورونو څخه ووتل، او د بدر په ميدان کې په نهايت ذلت او خوارۍ سره ووژل شول، او له هغه پنځه شپږ کاله وروسته پر معظّمه مکه باندې هم د اسلام قبضه وشوه، د کفّارو هغه حکومت او شوکت تباه او فنا شو، او بالآخر په ډېر لږ مدّت کې نه يوائې په معظّمه مکه کې بلکه کې په ټوله «جزيرة العرب» کې د محمد صلی الله عليه وسلم يو تن مخالف هم پاتې نشو.

سُنَّةَ مَن قَدْ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِن رُّسُلِنَا وَلَا تَجِدُ لِسُنَّتِنَا تَحْوِيلًا ۝٧٧

(دغه وړاندې) طريقه ځمونږ (په مثل د هغې طريقې ځمونږ ده) په هغه چا کې چې پر تحقيق لېږلي وو مونږ پخوا له تا نه له رسولانو ځمونږ، او نه به مومې ته طريقه (عادت) ځمونږ ته هيڅ تغير تبديل.

تفسير: يعنې ځمونږ هم دغه دستور له قديمه تر اوسه جاري دی، کله چې په کوم کلي يا ښار کې د الله تعالی نبي ته يې هستوګنه نه ده ورکړي؛ نو پخپله د همغه ځای اوسيدونکي نه دي پاتې شوي.

أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ وَقُرْآنَ الْفَجْرِ ۖ إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا ۝٧٨

قائموه (سم ودروه له ټولو حقوقو سره) لمونځ وروسته له زواله د لمر، تر تيارې د شپې پورې (يعنې ماسپښين، مازديګر، ماښام، او ماخوستن لمونځونه اداء کړه !)، او له قرائت د فجر (يعنې د سهار لمونځ اداء کړه)، بېشکه چې قرآن لوستل (لمونځ کول) د فجر دی حاضر شوی (يعنې ورحاضرېږي ورته ملائک د شپې او د ورځې).

تفسير: يعنې د دوی د دغو حيلو او پلمو (تدبيرونو) هيڅ پروا مه کوئ، او له سره خپل فکر او چرت پرې مه خرابوئ، تاسې تل خپل رب او مالک ته متوجه اوسئ ! خپل لمونځونه سم صفا اداء کوئ ! ځکه چې تعلّق مع الله داسې يو شيز دی چې انسان ته پر ګردو (ټولو) مشکلاتو او نوائبو (تکاليف) برې او غلبه ورکوي: ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾ (اول جزء د البقرې سورت (۵) رکوع (۴۵) آيت )، ځمونږ د دې تفسير په ﴿لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَىٰ غَسَقِ اللَّيْلِ﴾ کې د ماسپښين، مازديګر، ماښام، ماسختن څلور واړه لمونځونه راغله.

﴿وَقُرْاٰنَ الْفَجْرِ﴾ الآیة ـ ښايي (د قرآن الفجر) له تعبيره دې طرف ته اشاره وي، چې په فجر کې د قرائت تطويل مطلوب دی، په حديث کې راغلي دي چې: «د فجر او عصر په وخت کې د شپې او د ورځې د پرښتو په منځ کې سره مبادله واقع کيږي»، لهذا په دغو دوو وختونو کې د ورځې او د شپې د پرښتو اجتماع وي، نو ځمونږ قرائت او لمونځ د دوی په حضور کې د زيار (کوښښ) برکت او ښېګڼې موجب دی، په دغه وخت کې پاس تلونکي پرښتې الله تعالی ته شهادت ورکوي، چې مونږ د خپل تګ راتګ په وخت کې ستا بندګان په لمانځه کې مصروف او مشغول وليدل، علاوه پر دې د سحر په وخت کې طبعاً د سړي زړه هم حاضر او مجتمع وي.

وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰۤى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ﴿۷۹﴾

او په (يوه ټوټه د) شپې کې خوب پرېږده او ويښ اوسه (په لوستلو د قرآن په لمانځه کې) دا زياتي (نفلي) عبادت دی خاص تاته، ښايي چې وبه دروي تا رب ستا په هغه مقام محمود (ستايلي شوي ځای د شفاعت) کې.

تفسير: شاه صاحب ليکي: «يعنې له خوبه راويښ شه ! (په تهجّد) کې قرآن ولوله، دغه حکم مو له ګردو څخه زيات پر تا کړی دی، چې تا ته (له ګردو څخه) لويه مرتبه درکوو، يعنې تهجّد مو خاص پر تا واجب کړی دی، او پر امت مستحبّ دی.

(مقام محمود) د عُظمی شفاعت مقام دی، کله چې بل هيڅ يو نبي به هيڅ يو شی نشي ويلی، نو ځمونږ پيغمبر صلی الله عليه وسلم به الله تعالی ته سجده وکړي او په لوړو صفاتو به يې وستايي او بيا به د خلکو لپاره شفاعت وکړي، چې دقيامت د ميدان حشر له عذابه يې خلاص کړي، او د خلکو تر منځ فيصله وکړي، نو الله تعالی به دده شفاعت قبول کړي او په لمړنو او وروستنو خلکو او انبياؤ به د هغه سيادت او افضليت عملاً ثابت شي.

تنبيه: د «مقام محمود» دغه تفسير په صحيحه وو احاديثو کې راغلی دی، او په (بخاري شريف) او په (مسلم شريف) او د احاديثو په نورو مقدّسو کتابونو کې د (کُبری شفاعت) نهايت مفصّل بيان شته.

وَقُلْ رَّبِّ اَدْخِلْنِيْ مُدْخَلَ صِدْقٍ وَّاَخْرِجْنِيْ مُخْرَجَ صِدْقٍ وَّاجْعَلْ لِّيْ مِنْ لَّدُنْكَ سُلْطٰنًا نَّصِيْرًا ﴿۸۰﴾

او ووايه (ای محمده !) ای ربه ځما ! ننه باسه ما په ننويستلو رښتيا (ښو سره مدينې ته)، او وباسه ما په ويستلو رښتيا (ښو سره له مکې نه)، او وګرځوه ما لره له جانبه خپله يو قوت مدد کوونکی (له اسلامه سره پر کُفر باندې).

تفسير: يعنې چېرې چې زه رسولی کېږم (مثلاً مدينې منورې ته)؛ په نهايت پت، عزت، حرمت او شوکت سره مې ورسوه، چې د حق کلمه عُليا وي ! او له هر ځای څخه چې ايستل يعني بيلتون دی (مثلاً له مکې څخه)؛ نو هغه دې هم په پت، غيرت، عزّت، حُرمت، او شوکت سره وي، چې دښمنان ذليل او خوار، او دوستان خوښ او فرحان شي !، او په هر صورت د صداقت فتح او بری وي، او کذب سر ځوړند او ښکته وي !، او داسې غلبه او تسلط راعنايت کړه چې له هغه سره ستا مدد او نصرت هم وي، څو د حق کلمه عليا، او معاندين ذليل او ښکته وي ! په دنيا کې هر يو قانون چې وي: سماوي يا أرضي؛ نو د هغه د انفاذ لپاره تر يوې درجې پورې د حکومت مدد ضروري دی، څو د هغو کسانو ضرر او فساد او عناد له مخه ورک کړی شي، چې سره له د دلائلو او براهينو له اورېدلو او د لمر په شان د حق واضح کېدلو هم ضد او عداوت چلوي، نو ځکه په (۲۷ جزء د الحديد سورت په (۲۵) آيت (۳) رکوع) کې يې فرمايلي دي: ﴿لَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَالْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ۚ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ﴾ الآیة .

وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ إِنَّ ٱلۡبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقٗا ﴿٨١﴾

او ووایه (ای محمده ! دوی ته کله چې بېرته ننوتې مکې ته فاتحاً): راغی حق (اسلام) او په تېښته ورک شو باطل (کفر او شرک)، بېشکه باطل دی ورکیدونکی (بې ثباته).

**تفسير:** دغه عظیم الشانه وړاندوینه په معظمې مکې کې شوې وه، چې هلته په ښکاره ډول سره د حق د غلبې کوم سامان نه وو، یعنې ووایه ای محمده !لوی قرآن چې مسلمانانو ته زېری ورکوونکی او باطل له منځه لرې کوونکی او ورکوونکی دی؛ راغی، پس وپوهېږئ چې اوس حق دین غالب شو، او د کفر د تښتېدلو پېښه یوائې له مکې معظمې څخه نه بلکه له ګردې «جزيرة العرب» څخه په عمل راځي.

په حدیث کې راغلي دي: کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مکّه معظمه کې په بري ننوت؛ نو په دغه وخت کې د کعبې شریفې په چار چاپېر کې درې سوه او شپېته بُتان وو، رسول الله مبارک په یوې لښتې سره پر ګردو یو یو وار کولو، او داسې به یې فرمایل: ﴿وَقُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَزَهَقَ ٱلۡبَٰطِلُۚ إِنَّ ٱلۡبَٰطِلَ كَانَ زَهُوقٗا﴾ ﴿قُلۡ جَآءَ ٱلۡحَقُّ وَمَا يُبۡدِئُ ٱلۡبَٰطِلُ وَمَا يُعِيدُ﴾

نو هر بُت به پړمخې لوېده، په دغه شان د پاک قرآن یوه وړاندوینه پوره شوه، او بل داسې یو اعلان وکړ شو چې: «هغه کُفر چې له کعبې څخه تښتېدلی دی؛ بیا به له سره بېرته نه راځي»، والحمد لله علی ذلک.

وَنُنَزِّلُ مِنَ ٱلۡقُرۡءَانِ مَا هُوَ شِفَآءٞ وَرَحۡمَةٞ لِّلۡمُؤۡمِنِينَ وَلَا يَزِيدُ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا خَسَارٗا ﴿٨٢﴾

او نازلوو (پر تا) له قرآنه هغه څيز چې شفاء دی (له ظاهري او باطني امراضو)، او رحمت دی لپاره د مؤمنانو (چې نفع پرې اخلي)، او نه زیاتوي (دغه قرآن) ظالمانو (کافرانو) ته مګر زیان (هلاکت چې ایمان پرې نه راوړي).

**تفسير:** یعنې څرنګه چې د حق له راتګه باطل تښتي؛ قرآني آیات هم بالتدریج نازلیږي، نو روحاني امراض هم لرې کیږي، او له زړونو څخه د باطله وو عقائدو او ذمیمه وو اخلاقو د شکوکو اوشبهاتو رنځوری بیخې محوه او ورکوي، بلکه ډېر اوقات د هغه له مبارک تأثیر بدني صحت هم حاصلیږي، لکه چې په (روح المعاني او زاد المعاد) او نورو کې د دې فلسفه او تجربه بیان کړی شوې ده.

په هر حال هغه کسان چې ایمان راوړي، یعنې د شفاء دغه نسخه استعمال کړي؛ نو له ګردو قلبي او روحاني امراضو څخه نجات مومي، او د الله تعالی په خصوصي رحمت او ظاهري او باطني نعماوو افتخار حاصلوي، هو ! هغه مریض چې له خپل ځان سره دښمني کوي، او له طبیب او معالجې سره دمخالفت تصمیم وکړي؛ نو ظاهر دی چې په همغه اندازه چې دی له علاجه او دواء څخه نفرت وکړي، او لرې ترې وتښتي؛ په همغه اندازه به زیان ومومي، ځکه چې مرض د زماني له امتداده داسې مهلک شی دی، چې له روحه سره یو ځای له بدنه لرې کیږي، نو دغه آفت د پاک الله له طرفه نه بلکه پخپله د همغه ظالم مریض له لوري راغلی دی، لکه چې په جزء (۱۱، د التوبه سورت په (۱۶) رکوع، (۱۲۵) آیت) کې پاک الله فرمایي: ﴿وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ فَزَادَتۡهُمۡ رِجۡسًا إِلَىٰ رِجۡسِهِمۡ وَمَاتُواْ وَهُمۡ كَٰفِرُونَ﴾

وَإِذَآ أَنۡعَمۡنَا عَلَى ٱلۡإِنسَٰنِ أَعۡرَضَ وَنَـَٔا بِجَانِبِهِۦۖ وَإِذَا مَسَّهُ ٱلشَّرُّ كَانَ يَـُٔوسٗا ﴿٨٣﴾

او کله چې نازل کړو نعمت (او احسان) پر انسان (لکه صحت، وسعت او راحت)؛ نو مخ ګرځوي (له یاد د الله)، او لرې شي ترې په اړخ ګرځولو (له کبره)، او کله چې ورسیږي ده ته شر بدي؛ نو شي دی ناامیده.

تفسير: يعني د انسان عجب حال دی، کله چې الله تعالی ده ته پخپل فضل سره نعمتونه وربخښي؛ نو احسان يې نه مني، هومره عيش او آرام يې چې ور په برخه شي؛ هغومره يې د هغه حقيقي منعم له طرفه غفلت او اعراض زياتيږي، او د عبوديت له فرائضو څخه ځان وباسي، او غاړه غړول ترې غواړي، بيا کله چې سخت او خراب وخت پرې راشي؛ نو يو ځلي به ګرد اميدونه او اسرې وشکوي، مأيوس او نااميده کيني، ګواکې په دواړو حالاتو کې له پاك الله څخه خپله علاقه شکوي، کله د غفلت په بناء، کله د مأيوسی په اقتضاء (نعوذ بالله من كلا الحالين).

قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلَىٰ شَاكِلَتِهِۦ فَرَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَنْ هُوَ أَهْدَىٰ سَبِيلًا ﴿٨٤﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې هر څوك عمل کوي په هغې طريقې چې مناسب وي له حاله د ده (له ښو او بدو)؛ نو رب ستاسې ښه خبردار دی په هغه چا چې هغه ښه موندونکی وي د سمې لارې.

تفسير: يعني هر يو کافر او مؤمن، معرض او مقبل پر خپلو طريقو، نياتو، طبيعتو او مذاهبو تګ کوي، او په همغه کې بُخت او لګيا وي، ليکن په ياد يې ولرئ چې د الله تعالی له محيط علمه د هيڅ انسان هيڅ يو عمل نشي خارجېدی، الله تعالی د هر چا د عمل طريقه او حرکت او سکنات برابر ګوري، او ښه عالم دی چې کوم يو څومره سم تګ کوي، او په کوم کوم شي کې په څه اندازه چپ (کوږ) تګ کوي؟ يا په کږه لاره ځي؟ او له هر يوه سره سم د هغه له عمل سره معامله کوي.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ ۖ قُلِ ٱلرُّوحُ مِنْ أَمْرِ رَبِّى وَمَآ أُوتِيتُم مِّنَ ٱلْعِلْمِ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٨٥﴾

او پوښتنه کوي له تا نه (ای محمده !) له روح څخه، ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې روح له امره د رب ځما دی، او نه ده درکړې شوې تاسې ته له علم (پوهې) څخه مګر لږ غوندې.

تفسير: ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلرُّوحِ﴾ يعني انساني روح څه شی دی؟ او د هغه ماهيت، حقيقت څه دی؟ د صحيحينو شريفينو له روايته سره موافق دغه سوال د مدينې منورې يهودانو له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه د ازموينې په ډول کړی وو، او د سيرو رواياتو څخه معلوميږي چې په معظمه مکه کې قريشو د يهودانو په مشورې دغه پوښتنه کړې ده، نو ځکه د دې آيت په مکيّت او مدنيت کې اختلاف دی، ممکن دی چې نزول يې مکرر وي، والله أعلم.

دلته د دې سوال له اندراجه به غالباً دغه مقصود وي؛ چې دغه خلق د هغو شيانو له پوهېدلو څخه چې ورته اړتيا او ضرورت لري خو اعراض کوي، او په غير ضروري مسائلو کې د عناد او تعنّت (ضد) له لارې جګړې کوي، دوی دغې خبرې ته زيات ضرورت درلود، چې د قرآني وحي له روح څخه باطني ژوندون يې حاصل کړی وی، او د دغې د شفاء له نسخې څخه مستفيد شوي وی: ﴿وَكَذَٰلِكَ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ رُوحًا مِّنْ أَمْرِنَا﴾ (٢٥ جزء د الشوری سورت (٥٢) آيت (٥) رکوع)، ﴿يُنَزِّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةَ بِٱلرُّوحِ مِنْ أَمْرِهِۦ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦٓ﴾ (١۴ جزء د النحل سورت (٢) آيت اوله رکوع)، مګر دوی ته له لږې له کاره او د عنادي مباحثو څخه چېرې فرصت پيدا کېده؟ مثلاً دغو معاندينو به داسې پوښتنې کولې: روح څه شی دی؟ جوهر دی؟ که عرض؟ مادي دی؟ که مجرّد؟ بسيط دی؟ که مرکب؟.

د داسې قسم غامضو او بې ضرورتو مسائلو په پوهېدلو نه نجات موقوف دی، او نه دغه بحثونه د انبياوو د تبليغ له فرائضو سره تعلّق لري، لوی لوی حکماء او فلاسفه تر نن پورې پخپله د (مادې) په حقيقت نه دي مطلع شوي، روح چې په هر حال له (مادې) څخه ډېر لطيف او خفي دی، د هغه اصلي ماهيت او کنهې پورې د رسېدلو څه اميد به وکړی شي؟ د مکې معظمې د مشرکينو د جاهلاتو او د مدينې منورې د يهودانو د اسرائيلياتو مطالعه کوونکو ته معلوم

دي؛ چې هغه قوم چې په ډېرو غټو خبرو او په نهايت واضحو حقايقو هم نشي پوهېدی؛ نو دوی به د روح پر حقايقو د پوهېدلو څه قدرت او استعداد ولري؟.

﴿قُلِ الرُّوحُ مِنۡ أَمۡرِ رَبِّي﴾ الآية ـ يهودانو د امتحان په مقصد له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا پوښتنه وکړه؛ نو پاک الله په واضح صورت دوی ته دغه ور ونه ښود، ځکه چې دوی د هغه د پوهېدلو حوصله نه درلوده، پخوانيو انبياوو عليهم السلام هم له مخلوق سره داسې دقيقې خبرې نه دي کړې، دومره پوهه کافي ده چې د الله تعالی په حکم سره يو شی په بدن کې لوېږي، کله چې هغه روح له بدن څخه وځي؛ نو سا هم خيژي او انسان مري.

وَلَئِن شِئۡنَا لَنَذۡهَبَنَّ بِٱلَّذِيٓ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ بِهِۦ عَلَيۡنَا وَكِيلًا ﴿٨٦﴾ إِلَّا رَحۡمَةً مِّن رَّبِّكَۚ إِنَّ فَضۡلَهُۥ كَانَ عَلَيۡكَ كَبِيرًا ﴿٨٧﴾

او که اراده وفرمايو مونږ نو خامخا بېرته به يوسو هغه څيز چې وحي کړی دی مونږ تاته (يعنې قرآن له سينو او له صفحو)، بيا به نه مومې ته خپل ځان ته په دې کار کې پر مونږ کوم وکيل (کفيل چې بېرته يې دروړي). ليکن (پرې مو ښود دا قرآن له جهته د) رحمت له جانبه د رب ستا، بېشکه فضل د دغه (الله) دی پر تا ډېر لوی.

تفسير: يعنې د لوی قرآن علم چې پاک الله تا ته درکړی دی، که الله تعالی اراده وفرمايي او د لږ څه موده له مخې هغه درڅخه واخلي؛ نو بيا به يې بل څوک نشي درکولی، ليکن د الله تعالی مهرباني پر تاسې ډېره زياته ده، نو ځکه يې دغه لوی نعمت در عنايت فرمايلی دی، او هيڅ وجه او دليل په لاس کې نشته، چې هغه در څخه بېرته واخلي، او يواځې د عظيمه قدرت اظهار مقصود دی، او هومره چې کامل روح وي، خو بيا د هغه ګرد کمالات موهوب او مستعار دي، او ذاتي نه دي.

قُل لَّئِنِ ٱجۡتَمَعَتِ ٱلۡإِنسُ وَٱلۡجِنُّ عَلَىٰٓ أَن يَأۡتُواْ بِمِثۡلِ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ لَا يَأۡتُونَ بِمِثۡلِهِۦ وَلَوۡ كَانَ بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٖ ظَهِيرًا ﴿٨٨﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) خامخا که يو ځای شي (ګرد) انسانان او (ګرد) پيريان په دې چې راوړي په شان د دې قرآن (په فصاحت بلاغت او درايت کې)؛ نو رابه نه وړي په شان د دې (قـرآن) اګر که شي ځينې د دوی له ځينو نورو سره ملاتړي.

تفسير: د لوی قرآن د اعجازو په متعلق په متعددو مواضعو کې کلام شوی دی، او پر دغه موضوع کې ځمونږ مستقله رساله «اعجاز القرآن» هم چاپ شوې ده، هغه دې ولوستله شي.

وَلَقَدۡ صَرَّفۡنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانِ مِن كُلِّ مَثَلٖ فَأَبَىٰٓ أَكۡثَرُ ٱلنَّاسِ إِلَّا كُفُورٗا ﴿٨٩﴾

او خامخا په تحقيق مکرّر بيان کړی دی مونږ خلقو ته په دې قرآن کې (مثل) له هره قسمه مثاله (لکه ترغيب ترهيب قصص او اخبار چې عبرت پرې واخلي)؛ نو غاړه کېښوده اکثرو خلقو (او راضي نشول په هيڅ) مګر په ناشکرۍ (او انکار له حقه).

تفسير: يعنې د دوی د خير غوښتلو لپاره عجيب او غريب مضامين څو څو ځلې په مختلفو اساليبو او په قسم قسم عناوينو بيان کړل شول، ليکن اکثرو احمقانو د هغه قدر ونه کړ، او د احسان منلو په ځای د هغه پر ناشکرۍ ګردو سره لاس يو کړ.

وَقَالُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْاَرْضِ يَنْۢبُوْعًا ﴿۹۰﴾ اَوْ تَكُوْنَ لَكَ جَنَّةٌ مِّنْ نَّخِيْلٍ وَّعِنَبٍ فَتُفَجِّرَ
الْاَنْهٰرَ خِلٰلَهَا تَفْجِيْرًا ﴿۹۱﴾ اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ كَمَا زَعَمْتَ عَلَيْنَا كِسَفًا اَوْ تَاْتِيَ بِاللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ قَبِيْلًا ﴿۹۲﴾
اَوْ يَكُوْنَ لَكَ بَيْتٌ مِّنْ زُخْرُفٍ اَوْ تَرْقٰى فِي السَّمَآءِ ؕ وَلَنْ نُّؤْمِنَ لِرُقِيِّكَ حَتّٰى تُنَزِّلَ عَلَيْنَا كِتٰبًا نَّقْرَؤُهٗ ؕ
قُلْ سُبْحَانَ رَبِّيْ هَلْ كُنْتُ اِلَّا بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۳﴾

او وايي (قريش) له سره به ايمان رانه وړو په تا (ای محمده !) تر هغه پورې چې جاري کړې ته مونږ ته له ځمکې (د مکې تل بهيدونکې خوټېدونکې) چينه. يا چې وي تا ته يو باغ له خرماوو او انګورو، نو رواني کړې ته ويالې په منځ د دې باغ کې په روانولو سره، يا چې راوغورځوې ته اسمان لکه چې ګمان کوې ته پر مونږ باندې ټوټې ټوټې، يا چې راولې ته الله او پرښتې مخامخ (ښکاره چې يې ووينو). يا چې وي تا ته يو کور له سرو زرو (يا ملمع په سرو زرو چې په کې کيني)، يا چې پورته وخېژې په اسمان کې، او له سره به ايمان رانه وړو په (تش) ختلو ستا (اسمان ته که چېرې وخېژې) تر هغه پورې چې راکوز کړې پر مونږ باندې داسې يو کتاب چې لولو يې (او تصديق ستا وي په کې)، ووايه (ای محمده ! دوی ته) پاکي ده رب ځما ته، آيا يم زه (يعنې نه يم زه) مګر يو انسان رالېږلی شوی (په شان دنورو رسولانو).

تفسير: کله چې کفّارو د لوی قرآن له اعجازه عاجز شول؛ نو په داسې لرې له مقصده فرمايشونو يې لاس پورې کړ، ځکه چې د دوی دغه عرض لپاره د استفادې او انتفاع نه وو، او محض تعنّت او عناد د هغوی مقصود وو.

په ﴿اَوْ تُسْقِطَ السَّمَآءَ﴾ کې هغه طرف ته اشاره ده چې د (۹ آيت سبأ سورت په (۱) رکوع کې) داسې ارشاد شوی دی: ﴿اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ؕ﴾

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰٓى اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَبَعَثَ اللّٰهُ بَشَرًا رَّسُوْلًا ﴿۹۴﴾

او نه دي منع کړي دې خلقو لره له دې نه چې ايمان راوړي کله چې راغی دوی ته بيان د حق (په ژبه د رسول) مګر (منع کړي دي خلق) دې خبرې چې ويلې به دوی: آيا رالېږلی دی الله يو سړی (يو انسان) رسول؟ ! (او پرښته يې ولې نه رالېږله).

تفسير: يعني سره د هدايت د رڼا د رسېدلو د دوی سترګې خلاصې نشوې، او در ګرده به يې هم دا ويل چې بنی آدم څرنګه د الله تعالی رسول کېدی شي؟ که پاک الله نبي لېږه؛ نو له اسمانه به يې کومه پرښته راښکته کوله.

د يادونې وړ ده هغه څوک چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم بشريت نه مني، ددغه کفارو له شبهې څخه متأثر دی او د قرآن کريم له صريحې نصوصو څخه سر غړونه کوي، لکه چې فرمائي:

قُلْ لَّوْ كَانَ فِي الْاَرْضِ مَلٰٓئِكَةٌ يَّمْشُوْنَ مُطْمَئِنِّيْنَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ مَلَكًا رَّسُوْلًا ﴿۹۵﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) که چېرې وی په ځمکه کې ملائکې (په بدل د انسان) چې ګرځېدلې په آرام سره (په شان د انسانانو)؛ نو خامخا رالېږلې به وه مونږ پر دوی باندې له اسمانه يو پرښته رسول.

تفسير: يعني که دغه ځمکه د بني آدمانو په ځای د پرښتو کلی او د هستوګنې ځای وی؛ نو بېشکه موزون به وی چې مونږ کوم پرښته نبي ګرځولې او لېږلې وی، که د بني آدمانو په طرف پرښته خپل اصلي صورت سره ولېږله شي؛ نو

زړونه او سترګې له سره د هغې د ليدلو توان نه لري، نو له هغه څخه به څرنګه مستفيد کېدی شوی؟، او که د بني آدمانو په صورت راشي؛ نو خلق به په اشتباه کې لويږي، دغه تقرير د «الأنعام» د سورت په اوله رکوع کې تېر شوی دی، هغه دې ولوستل شي !.

﴿قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًۢا بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۚ اِنَّهٗ كَانَ بِعِبَادِهٖ خَبِيْرًۢا بَصِيْرًا ۝٩٦﴾

ووايه (اى محمده ! دوی ته) کافي دی الله شاهد په منځ ځما او ستاسې کې، بېشکه چې الله دی په بندګانو خپلو ښه خبردار ښه ليدونکې.

**تفسير:** هغو کسانو چې داسې به يې ويل: ﴿اَوْ تَاْتِيَ بِاللّٰهِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ قَبِيْلًا﴾ يعنې که الله له مونږ سره مخامخ شي، او ستا تصديق وکړي؛ نو هله به يې ومنو، نو يې وفرمايل چې: الله اوس هم پخپل فعل سره ځما تصديق کوي، ځکه چې هغه عليم او خبير دی، اوګوري چې زه د نبوّت وظايف انجاموم او ځما له هغو ګردو مصائبو څخه چې يې تېروم، او له هغو مساعيو څخه چې په پټه او ښکاره يې کوم؛ پوره خبردار دی، او سره له هغه دی له ما سره مرسته (مدد) کوي، او ځما په لاس او ژبه متماديًا داسې علمي او عملي نښې ښکاره کوي؛ چې خارق العاده او د ده د عمومي قدرتي قانون څخه ډېر لوړ او عالي دي، هغه ځما مقصد يومًا فيومًا کامياب، بريالی، کامران، او وسيع الأثر ګرځوي، او تکذيب کوونکي ته قدم په قدم تنبيه ورکوي، چې په دې عمل سره بيخي تاسې فلاح نشئ موندلی، آيا دغه د الله تعالی له جانبه فعلي ښکاره شهادت نه دی؟ چې زه په دغه خپله دعوی کې صادق يم؟ آيا له يوه مفتري سره پاک الله هم داسې معاونت او مرستې کوي؟.

﴿وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۚ وَمَنْ يُّضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِهٖ ؕ وَنَحْشُرُهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ عُمْيًا وَّبُكْمًا وَّصُمًّا ؕ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنٰهُمْ سَعِيْرًا ۝٩٧﴾

او هر هغه چاته چې سمه لاره وښودله الله؛ نو همغه د سمې لارې موندونکی دی، او هر څوک چې يې ګمراه کړي (الله)؛ نو له سره به نه مومې ته دوی ته نور دوستان بې له دغه (الله څخه چې سمه لاره وروښيي)، او راجمع به کړو (مونږ) دوی لره په ورځ د قيامت کې (نسکور تلونکي په سبب د بدو عملونو د دوی) پر مخونو خپلو چې ړانده او ګونګيان او کاڼه به وي، ځای د دوی به دوزخ وي، هر کله چې غلې شي (لمبې د دوزخ) زيات به کړو دوی ته تېز اور.

**تفسير:** يعنې د قيامت په ځينو مواطنو کې به کفّار پر خپلو مخونو نسکور ړانده او ګونګيان او کاڼه کړی شوي بيولی کيږي، په حديث کې راغلي دي چې لويو اصحابو عرض وکړه، چې يا رسول الله ! دوی به څرنګه په خپلو مخونو نسکور بيولي کيږي، رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: هغه قادر مطلق يې چې پر پښو بيولی شي؛ همغه قادر دی چې په سر يې هم روان کړي.

پاتې شو د دوزخيانو پرمخې کشول (راښکل)؛ نو هغه به وروسته د دوزخ د داخلېدو څخه وي: ﴿يَوْمَ يُسْحَبُوْنَ فِى النَّارِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ ؕ ذُوْقُوْا مَسَّ سَقَرَ﴾ (۲۷ جزء د القمر (۴۸) آيت (۳) رکوع).

﴿ذٰلِكَ جَزَآؤُهُمْ بِاَنَّهُمْ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا وَقَالُوْٓا ءَاِذَا كُنَّا عِظَامًا وَّرُفَاتًا ءَاِنَّا لَمَبْعُوْثُوْنَ خَلْقًا جَدِيْدًا ۝٩٨﴾

دا (عذاب) جزاء د دوی ده په سبب د دې چې بېشکه دوی کافران شوي وو په آيتونو ځمونږ او ويل به دوی: آيا کله چې شو مونږ هډوکي او خاورې رېژېدلې، آيا مونږ خامخا بيا پورته کاوه شو په پيدايښت نوي سره؟ !.

اَوَلَمۡ يَرَوۡا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ قَادِرٌ عَلٰٓى اَنۡ يَّخۡلُقَ مِثۡلَهُمۡ وَجَعَلَ لَهُمۡ اَجَلًا لَّا رَيۡبَ فِيۡهِ ؕ فَاَبَى الظّٰلِمُوۡنَ اِلَّا كُفُوۡرًا ﴿۹۹﴾

آیا نه ګوري دوی (او نه دي خبر په دغه) چې بېشکه هغه الله چې (په خپل کامله قدرت سره) يې پيدا کړي دي اسمانونه او ځمکه، قادر دی پر دې چې پيدا کړي په مثل د دوی (نور ډېر)؟، او مقرر کړی يې دی دوی ته يو اجل (نېټه) چې نشته هيڅ شک په هغه کې، نو منعه راوړه (او ونه منله) ظالمانو (هيڅ شی) مګر ناشکري (او انکار له بعثه او حشره).

تفسير: يعنې هغه لوی ذات چې دومره لوی اجسام يې پيدا کړي دي، نو آيا هغه ته ستاسې په شان د يوه وړوکي شي پيدا کول څه اشکال لري؟ ﴿لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ اَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ﴾ (۲۴ جزء د المؤمن (غافر) سورت (۵۷) آيت (۶) رکوع).

﴿فَاَبَى الظّٰلِمُوْنَ اِلَّا كُفُوْرًا﴾ يعنې سره د دومره واضحه وو مضامينو او دلائلو د اورېدلو سره هم د دې بې انصافانو په کُفر او ضلال او ناشکرۍ کې همغه ترقي او پرمختګ ليدل کيږي، او لږ څه هم په لاره نه راځي.

قُلۡ لَّوۡ اَنۡتُمۡ تَمۡلِكُوۡنَ خَزَآئِنَ رَحۡمَةِ رَبِّىۡۤ اِذًا لَّاَمۡسَكۡتُمۡ خَشۡيَةَ الۡاِنۡفَاقِ ؕ وَكَانَ الۡاِنۡسَانُ قَتُوۡرًا ﴿۱۰۰﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) که چېرې تاسې مالکان شئ د خزانو د رحمت د رب ځما؛ نو په دغه وخت کې هرومرو (خامخا) منع به راوړئ (بخل وکړئ) د وېرې د (خلاصېدو د مال په) انفاق (کې)، او دی انسان زړه تنګ او بخل کوونکی.

تفسير: په تېره رکوع کې يې فرمايلي وو: ﴿اِلَّا رَحْمَةً مِّنْ رَّبِّكَ اِنَّ فَضْلَهٗ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيْرًا * قُلْ لَّئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَالْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ﴾ الآية - «الله تعالی په خپل رحمت پر تاسې لوی فضل کړی دی، چې د قرآن په شان يو بېمثاله دولت يې عطاء فرمايلی دی»، په منځ کې يې د مخالفينو د تعنّت او عناد او له کاره وتلي مطالبات، اعراض او تکذيب او د هغو د نتائجو ذکر وکړ، دلته بيا د همغه پخواني مضمون په طرف عود (واپسي) کړی شوی دی، يعنې يوه بنده ته داسې عظيم الشأن رحمت او عديم النظير دولت وربخښل د همغه حقيقي جواد او مطلق وهّاب له شأنه څخه کېدی شي، چې د هغه سره د غير متناهي رحمت خزانې دي، او کوم مستحق ته زيات څخه په زيات ورکولو کې نه ده ته د فقر او مسکنت وېره پيدا کيږي، او نه د دې خبرې اندېښنه ورته پېښېدی شي چې هغه بل به ځما په ورکړه او امداد ځما مقابل او مخامخ شي، يا وروسته د دې امداد د هغه لاس به پر ما پورته او زه به ترې ښکته شم، الله قدّوس د تنګ زړه او ډارېدونکي انسان په شان العياذ بالله تنګ زړی نه دی، چې که هغه (انسان) د رحمت د خزانې مختار مالک وګرځولی شي؛ خو بيا هم د ده له طبيعت څخه بخل او تنګ زړه توب نه ځي، او د کوم يو مستحق د ورکړې څخه دومره ويرېږي، چې ځما ګرد شته او ثروت به په کې صرف شي، او زه به تش لاس په ميدان کې پاتې شم، يا خپل مال چې زه نن پر هغه لګوم؛ نه چې هغه سبا ورځ ځما سيال او شريک يا له ما څخه زيات ښاغلی شي، په هر حال که د الهيه رحمت خزانې ستاسې په قبضه کې وی؛ نو تاسې به هيچا ته هيڅ شی نه ورکول.

وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسٰى تِسۡعَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ فَسۡـَٔلۡ بَنِىۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ اِذۡ جَآءَهُمۡ فَقَالَ لَهٗ فِرۡعَوۡنُ اِنِّىۡ لَاَظُنُّكَ يٰمُوۡسٰى مَسۡحُوۡرًا ﴿۱۰۱﴾

او البته په تحقيق ورکړي دي مونږ موسی ته نهه معجزې ښکاره، نو پوښتنه وکړه (ای محمده ! د علماوو) د بني اسرائيلو څخه کله چې راغی (موسی) دوی ته؛ نو وويل دغه (موسی) ته فرعون: بېشکه زه ګمان کوم پر تا ای موسی د سحر کړی شوي.

**تفسیر:** یعني همغسې چې پاك الله تاسې ته ای محمده صلی الله علیه وسلم پخپل فضل او رحمت سره عظیم قرآن عنایت کړی دی، او نو ډېر مراحم یې هم پر تا مبذول فرمایلي دي؛ همداسې مونږ پخوا له دې نه موسی علیه السلام ته ښکاره نښې او معجزې د ده د حاله سره مناسب عنایت فرمایلي دي څه وخت چې ده بني اسرائیلو ته د فرعون له ظلمونو څخه د نجات بخښلو لپاره تشریف راوړی وو، که یې غواړې نو د بني اسرائیلو د باخبره او منصف مزاجه علماوو څخه پوښتنه وکړه، او ویې ګوره چې تر کومه ځایه پورې صحیح دي.

**تنبیه:** هغه نهه معجزې دا دي: ۱- ید بیضاء، ۲- عصا، ۳- سنین، ۴- نقص الثمرات، ۵- طوفان، ۶- جراد، ۷- قمل، ۸- ضفادع، ۹- دم (په ځینو تفاسیرو کې طوفان، قحط، او د نقص الثمرات په ځای حجر، بحر او رفع الطّور راغلی دی)، د الأعراف «د سورت په (۱۶) رکوع کې ځمونږ د دغه فوائد موضح القرآن» د ﴿فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الطُّوْفَانَ وَالْجَرَادَ﴾ الآیة ـ په تفاسیرو کې مو د هغه تفصیل لیکلی دی، هلته دې وکتلی شي.

﴿قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَآ اَنْزَلَ هٰٓؤُلَآءِ اِلَّا رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ بَصَآئِرَ ۚ وَاِنِّيْ لَاَظُنُّكَ يٰفِرْعَوْنُ مَثْبُوْرًا﴾ ﴿١٠٢﴾

وویل (موسی بیا) خامخا په تحقیق پوهېږې (ته پخپل زړه کې) چې نه دي نازلې کړې دغه (نهه معجزې هیڅا) مګر رب د اسمانونو او د ځمکې، معجزې ښکاره (چې هر یوه دلالت کوي په نبوّت ځما)، او په تحقیق زه خامخا ګمان کوم پر تا ای فرعونه د هلاك شوي (مغلوب کم عقله).

تفسیر: یعني اګر که ستا ژبه انکار کوي، مګر ستا زړه ډېر ښه پوهیږي چې دغه عظیم الشأن نښان ستا د سترګو د خلاصولو لپاره همغه قادر او قاهر الله درښوولی دی، چې د آسمان او د ځمکې حقیقي مالك دی، اوس که کوم سړی عمداً محض د ظلم او تکبّر د لارې له حقه انکار وکړي، د هغه په نسبت به پرته له دې نه څه خیال کولې شي، چې د ده د تباهۍ وخت پر سر رسېدلی دی، له دې نه معلوم شو چې ایمان د پوهېدلو نوم نه بلکه د منلو نوم دی (یعني عقیده او عمل): ﴿وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا﴾ (۱۹ جزء د النمل سورت (۱۴) آیت اوله رکوع).

﴿فَاَرَادَ اَنْ يَّسْتَفِزَّهُمْ مِّنَ الْاَرْضِ فَاَغْرَقْنٰهُ وَمَنْ مَّعَهٗ جَمِيْعًا﴾ ﴿١٠٣﴾

نو اراده وکړه (فرعون) د دې چې وخوځوي او لرې کړي دوی له ځمکې (د مصر)؛ نو ډوب مو کړ فرعون او هر هغه څوك چې له ده سره وو ټول.

**تفسیر:** کله چې فرعون ولید چې ورځ په ورځ د موسی علیه السلام اثر زیاتیږي؛ نو داسې اندېښنه ور پیدا شوه، چې بني اسرائیل چېرې زور او قوت ونه نیسي، نو ځکه یې د هغوی په زیات ربړولو (تکلیف کولو) شروع وکړه، او داسې یې مقرره کړه، چې دوی په مصر کې په امن او راحت سره ژوندون ونه کړی شي، خو بالآخر مونږ همدغه فرعون او فرعونیان پرېښبودل، او د قلزم په بحیره کې مو ګرد هغه ظالمان ډوب کړل.

﴿وَّقُلْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ لِبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اسْكُنُوا الْاَرْضَ فَاِذَا جَآءَ وَعْدُ الْاٰخِرَةِ جِئْنَا بِكُمْ لَفِيْفًا﴾ ﴿١٠٤﴾

او ومو ویل وروسته (د غرق) د فرعون بني اسرائیلو ته چې اوسئ تاسې (اوس په دې) ځمکه (د مصر) کې؛ نو کله چې راشي وعده د آخرت (یعني قیامت)؛ نو به راولو تاسې (سبطیان او قبطیان په محشر کې حساب ته یو ځای) ګډوډ.

تفسير: يعنې پاک الله د ظالمانو بيخ او بکرو ويست، او تاسې ته يې د هغوی د مرييتوبه نجات درکړ، اوس (مصر) ته (يا شام) هر چېرته مو چې زړه غواړي؛ په آزادۍ او هوسايۍ (آرام) سره تلی شئ، کله چې قيامت راشي بيا به يو ځلې تاسې او ستاسې تباه شوي دښمنان سره يو ځای کوو، او هلته به د شقي او سعيد، هالک او ناجي دائمي فيصله صادريږي.

وَبِالْحَقِّ اَنْزَلْنٰهُ وَبِالْحَقِّ نَزَلَ ۗ وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا ﴿۱۰۵﴾

او په حقه نازل کړی مو دی دغه (قرآن) او په حقه سره نازل شوی دی (او له اوله او تر آخره محفوظ دی)، او نه يې لېږلی مونږ ته (ای محمده !) مګر زېری ورکوونکی (مؤمنانو ته په نعيم سره) او ويروونکی (کافرانو ته په جحيم سره).

تفسير: د موسی عليه السلام د معجزاتو او نورو خبرو د ذکر کولو څخه وروسته بيا د کلام مخ يې د لوی قرآن په لوري وګرځاوه، يعنې موسوي معجزات پر خپل ځای پر بېږدئ، ليکن هغه ښکاره معجزې چې محمد صلی الله عليه وسلم ته ورکړی شوي دي؛ په هغو کې له ګردو څخه لويه علمي معجزه همدغه عظيم الشأن قرآن دی، چې هغه مو سم له حکمته سره پخپل عظيم علم او په اعلی درجه صداقت مشتمل کړی او لېږلی دی، او پوره په همغه صداقت سره تاسې ته رسېدلی دی، او په منځ کې يې لږ څه تغيير او تبديل هم نه دی واقع شوی: ﴿فَاعْلَمُوْٓا اَنَّمَآ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَاَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ﴾ (۱۲ جزء د هود سورت (۲) رکوع، (۱۴) آيت).

وَقُرْاٰنًا فَرَقْنٰهُ لِتَقْرَاَهٗ عَلَى النَّاسِ عَلٰى مُكْثٍ وَّنَزَّلْنٰهُ تَنْزِيْلًا ﴿۱۰۶﴾

او قرآن نازل کړی دی مونږ هغه ټوټه ټوټه (لږ لږ) لپاره د دې چې ولولې ته (ای محمده !) دغه (قرآن) په خلقو باندې په آرام سره، او نازل کړی دی مونږ دغه قرآن په نازلولو سره.

تفسير: د لوی قرآن له رالېږلو څخه اصلي مقصد د هغه پوهېدل او پرې عمل کول دي، چې همدغه ته تدبّر او تذکّر وايي، ليکن د هغه تش الفاظ او حروف هم له نورانيت او برکته تش نه دي: ﴿كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ اِلَيْكَ مُبٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوْٓا اٰيٰتِهٖ وَلِيَتَذَكَّرَ اُولُوا الْاَلْبَابِ﴾ (۲۳ جزء د ص سورت (۲۹) آيت (۲) رکوع)، نو ځکه د هغه سورتونه او آيتونه سره بېل بېل کړی شوي دي، څو د تلاوت کولو په وخت کې پوره تسهيلات وي، او د ويونکي او اورېدونکي د علم، فهم، حفظ او نورو ته هم اساني وي، او ورو ورو يې ځکه را نازل کړ؛ چې څرنګه حالات به راوړاندې کېده، د هغه سره به مناسب احکام او هدايات صادربده، څو هغه جماعت چې وروسته له دې نه د ګردې دنيا معلّمان او لاره ښوونکي ګرځېدل؛ د هر آيت او حکم موقع او محل او نور خصوصيات هم په ښه شان سره په ياد وساتلی شي، او د راتلونکو نسلونو لپاره د کوم آيت د بې موقعه استعمالولو ګنجايش نه وي پاتې.

قُلْ اٰمِنُوْا بِهٖٓ اَوْ لَا تُؤْمِنُوْا ۗ اِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ مِنْ قَبْلِهٖٓ اِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ يَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ سُجَّدًا ﴿۱۰۷﴾
وَّيَقُوْلُوْنَ سُبْحٰنَ رَبِّنَآ اِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُوْلًا ﴿۱۰۸﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې ايمان راوړئ په دې قرآن يا ايمان نه راوړئ، بېشکه هغه کسان چې ورکړی شوی دی دوی ته علم پخوا له دغه (قرآنه) کله چې ولوستی شي پر دوی (دغه قرآن؛ نو) نسکور پر بوخې ډوی (په ځمکه) په زنو (وچولو «تندو» خپلو) په دې حال چې سجده کوونکي وي (تعظيمًا وتشکرًا). او وايي دوی: پاکي ده رب ځمونږ ته، په تحقيق سره ده وعده د رب ځمونږ خامخا کېدونکې.

**تفسير:** يعنې تاسې يې منئ که يې نه منئ؛ د لوی قرآن د حقانيت او د رسول الله مبارك د رسالت تصديق هغه منصف مزاجه اهل العلم کوي چې د پخوانيو سماويه وو کتابونو د بشاراتو څخه خبرداره دي؛ دوی د دغه پاك کلام د اورېدلو څخه پرمخې پر خپلو زنو سرونه په سجده ږدي، او وايي سبحان الله دا څومره عجيب او غريب کلام دی، بېشکه د الله تعالی هغه وعده پوره کېدونکې ده، چې د موسی عليه السلام په ژبه د تورات په کتاب (سفر استثناء) کې کړی شوې وه چې (ای بني اسرائيلو ! زه به ستاسې په ورونو (بني اسماعيل) کې يو نبي مبعوث کوم، چې د هغه په خوله کې به خپل کلام اچوم) بلا شُبهه هغه همدا کلام دی چې د محمد صلی الله عليه وسلّم په مبارکه خوله کې اچولی شوی دی، کله چې اهل العلم د قرآن د حقّانيت تصديق کوي؛ نو اوس د جاهلانو له انکاره هغه ته هيڅ يو اعتراض نه دی متوجّه.

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ﴿١٠٩﴾

او نسکور پرېوځي دوی (پر څمکه) پر وچولو (تندو) خپلو چې ژاړي دوی (د الله له وېرې) او زياتوي دوی ته (اورېدل د قرآن) عاجزي.

**تفسير:** يعنې کله چې پاك قرآن اوري؛ پر دوی رقّت طاري کيږي، او په سجده لوېږي، او په تواضع، عجز او نياز کې تزيد کوي، کله چې سر په سجده ږدي؛ نو لا د دوی د عجز او نياز په مراتبو کې تزيد پيدا کيږي، د اذقان (زنو) په لفظ کې بنايي دې طرف ته هم اشاره وي، چې په سجود کې زياته مبالغه کوي، ګواکې خپلې زنې هم پر څمکه لګوي، يا به دغه محض د سجود علی الوجه څخه کنايه وي، والله أعلم.

قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ ۚ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) وبولئ تاسې الله، يا وبولئ تاسې رحمان، هر يو نوم يې چې وبولئ (او واخلئ تاسې؛ پس هغه ښه دی)؛ نو ده لره دي نومونه ډېر ښائسته.

**تفسير:** د سُجود او خشوع او نورو په مناسبت دلته د دعاء (د الله د بلنې) او د دعاء په مناسبت په وروستني آيت کې د «صلوة» ذکر کړی شوی دی، واقعه دا ده چې د الله تعالی له نومونو څخه د عربو مشرکينو په نزد د «الله» لفظ استعمال ډېر زيات وو، او د ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ لفظ او نوم په دوی کې دومره مأنوس نه وو، البته په يهودانو کې د ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ اسم کثير الاستعمال وو، په عبراني کې هم دغه مبارك اسم همداسې مقدّسه معنی درلوده، لکه چې په عربي کې يې لري، د بل لوري (مسيلمة الکذّاب) هم خپل لقب «رحمن اليمامة» ايښی وو.

الغرض مشرکانو پر الله د ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ د اسم له اطلاقه بد وړل، او تور به يې ځني خوړ، او په وحشت کې به ترې لوېدل، لکه څه مهال (وخت) چې د رسول الله مبارك له ژبې څخه يې ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ اورېده؛ نو په خپلو منځونو کې به يې ويل چې: محمد مونږ د دوو معبودانو له بللو څخه منع کوي، او دی پخپله ماسوا د الله څخه ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ ته هم غږ کوي.

يهودانو به داسې شکايت کولو چې په محمّدي اذکارو کې او اورادو کې ولې د ﴿الرَّحْمَٰنُ﴾ د نامه ذکر په دغه اندازه زيات نه دی لکه چې په مونږ کې شته؟ نو د دغو دواړو ځواب په دغه آيت کې ورکړی شوی دی، چې لفظ «الله» او لفظ د «رحمن» دواړه د يوه منبع الکمالات ذات دوه نومونه دي، د صفاتو او د اسماوو د تعدّد څخه د ده د ذات تعدّد نه لازميږي، او نه د هغه څيز د توحيد سره څه منافات لري، پاتې شوه دغه خبره چې يو نوم ولې په کثرت استعماليږي؟ نو وپوهېږئ چې د پاك الله هومره چې أسماء الحُسنی دي؛ له هغو څخه هر يو نوم چې واخلئ او په

هغه سره پاک الله ته غږ وکړئ؛ صحيح دی، او مقصود ترې همغه يو ذات دی، او د عنواناتو او تعبيراتو په تنوّع سره معنوَن نه بدلیږي.

وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا ﴿١١٠﴾

او ډېر ظاهروالی مه کوه په (قرائت د) لمانځه خپل کې، او مه کوه ډېر پټوالی په هغه کې، او ولټوه په منځ د دغه (جهر او اخفاء) کې يوه لاره (متوسّطه).

**تفسير:** يعني په جهري لمانځه کې (او همداسې په ادعيه وو او اورادو او نورو کې هم نه ډېر په زور سره غږېدل په کار دي، او نه ډېر په ورو سره ويل لازم دي، بلکه منځنی او متوسط قرائت موزون دی (موضح القرآن).

په احاديثو کې دي: کله چې په مکّه معظّمه کې قرائت په زوره سره لوستل کېده؛ نو مشرکينو به د هغه په اورېدلو سره هم قرآن او هم د هغه ليږونکي او د هغه راوړونکي او هم ويونکي په نسبت او شان کې چټي (بېکاره) خبرې او اپلتې ويلې، نو ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم په ډېر ورو ورو لوستلو شروع وکړه، نو په دغه مناسبت دا آيت نازل شو، يعني نه دومره په زور يې ولوله، چې مشرکين يې په خپلو کورونو او مجالسو کې واوري، او نه دومره ورو ورو يې ولوله؛ چې پخپله ستا ملګري هم هغه وانه وري، او ترې مستفيد نشي، افراط او تفريط دواړه پرېږدئ! او متوسّطه رويه ځان ته غوره کړئ! چې په هغې سره قلب متأثر کيږي، او تشويش بيخي ورک کيږي، نو هر کله چې دوی مدينې منورې ته هجرت وکړو، نو دغه حکم ختم شوو.

**تنبيه:** ددې آيت شريف او د الأعراف سورت د (۱۸۰) د آيت شريف څخه دا راښکاره ګنديږي چې الله تعالی په دعاء او په ذکر کې په هغه نومونو ياد شي او وبلل شي په قرآني يا صحيح نبوي نصوصو کې ثابت وي، او له هغه نومونو څخه ځان وساتل شي چې په شرعي نصوصو کې د هغې ثبوت نه وی، بلکه د هرې ژبې خاوندانو به خپله ژبه کې په الله تعالی نوم اينبې وي، تر څو له هغه الحاد څخه ځان وژغورل شي چې د الأعراف په سورت کې ورڅخه منع راغلې ده.

وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَلَمْ يَكُن لَّهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَلَمْ يَكُن لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴿١١١﴾

ووايه (ای محمده!) چې ټوله ثنا صفت هغه الله لره دي چې نه يې دی نيولی څوک ولد (لکه چې يهودان او نصاری يې وايي)، او نشته ده ته شريک په ملک (سلطنت) کې (لکه چې مشرکان وايي) او نشته ده ته څوک دوست له جهته د عاجزۍ (لکه چې کتابيان يې وايي)، او نسبت د لويي وکړه الله ته (هر وخت) په لويۍ کاملې سره.

**تفسير:** له لمانځه څخه وروسته د خالص توحيد ذکر يې وفرمايه او سورت يې ختم کړ، يعني ګرد محامد او ثناوې خاص د هغه الله تعالی لپاره دي، چې په خپلو ګردو صفاتو او کمالاتو کې واحد دی، او له هر راز (قسم) عيوبو او قصورو او نقصو او فتورو څخه بيخي پاک او منزّه دی.

د ده په ذات کې هيڅ قسم داسې ضعف او کمزوري نشته، چې د هغه د تلافۍ لپاره بل چا ته اړ يا محتاج شي، له بل چا څنې په مدد اخيستلو کې درې احتماله کېدی شي، يا له وړو کې څخه مدد وغوښتی شي، لکه چې پلار له اولاد څخه مدد اخلي، يا له مساوي څخه لکه چې يو شريک له بل شريک څخه مرسته غواړي، يا له لوی څخه لکه چې کمزور او ضعيف انسان د ذلّت او مصيبت په وخت کې له غټانو او مشرانو څخه امداد غواړي، په دغه آيت کې

د دغو دریو واړو نفي وکړه شوه، ګواکې په ﴿لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ سره د اول احتمال او په ﴿وَّلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ﴾ سره دوهم او په ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ﴾ سره د دریيم احتمال د نفي کولو څخه وروسته په ﴿وَكَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا﴾ کې يې د خپل عظمت او کبريائي په لوري مونږ ته توجّه راکړه.

يعنې انسان ته لازم دي چې د الله تعالى پر عظمت او کبريائي له زړه او په ژبه سره اقرار وکړي، او هغه جلّ وعلا له له هر راز کمزوريو څخه ارفع او اعلى وګڼي، او لطف دا دی چې په ﴿لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا﴾ کې د نصارى او په ﴿وَّلَمْ يَكُنْ لَّهُ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ﴾ کې د مشرکانو او په ﴿وَلَمْ يَكُنْ لَّهُ وَلِيٌّ مِّنَ الذُّلِّ﴾ کې د هغو يهودانو ترديد وشو، چې د هغو په نزد د الله بېړۍ د يعقوب عليه السلام په مقابل کې مقاومت ونشو کولی (العياذ بالله).

تمّت سورة بنیَ اسرآئيل بعون الله وحُسن توفيقه، فلله الحمد والمنّة.



# سُورَةُ الكَهفِ

«د (الکهف) سورت مکي دی، پرته له (۲۸) آیت څخه او له (۸۳ـ ۱۰۱) آیته پورې چې مدني دي، (۱۱۷) آیته، او (۱۲) رکوع لري، په تلاوت (۱۸) او په نزول کې (۶۹) سورت دی، وروسته د «الغاشیة» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡۤ اَنۡزَلَ عَلٰی عَبۡدِهِ الۡکِتٰبَ وَ لَمۡ یَجۡعَلۡ لَّهٗ عِوَجًا ؕ﴿۱﴾

هر ثنا صفت خاص الله لره دی، هغه (الله) چې نازل کړی (یې) دی پر بنده خپل (محمد صلی الله علیه وسلم) کتاب (قرآن)، حال دا چې نه یې دی ګرځولې په دې قرآن کې هیڅ کوږوالی (نه په الفاظو او نه په معانیو کې).

تفسیر: یعنې له اعلی ځنې د اعلی تعریفونو او شکرونو مستحق هغه پاك الله کېدی شي؛ چې خپل مخصوص او ډېر مقرّب بنده محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې یې له ګردو (ټولو) څخه اعلی او اکمل کتاب نازل کړی دی، او په دې شان اهل د ځمکې یې په ډېر لوی نعمت او برکت مشرّف او ممتاز فرمایلي دي، بېشکه په دغه مقدّس کتاب کې له سره هیڅ یوه کږه وږه او خرابه خبره نشته، عبارات یې په انتهایي درجه سلیس او فصیح، د بیان اسلوب یې ډېر مؤثر او صحیح، تعلیم یې نهایت واضح، متوسط او معتدل دی، چې له هر وخت او له هر طبیعت سره مناسبت او مقاربت لري، او له سلیم عقل او فطرت سره بالکل مطابق دی، د هیڅ قسم افراط او تفریط هیڅ قسم اثر او شائبه په کې نشته.

قَیِّمًا لِّیُنۡذِرَ بَاۡسًا شَدِیۡدًا مِّنۡ لَّدُنۡهُ

حال دا چې سم برابر دی (افراط او تفریط له سره په کې نشته، او نازل کړی یې دی) لپاره د دې چې وویروي (محمّد په دې کتاب سره کفّار) د عذابه سخته له جانبه د الله.

تفسیر: یعنې دغه مقدّس کتاب له هغه عذاب او سخت آفته چې پر مکذّبانو د قهّار الله تعالی له طرفه راتلونکی دی؛ خبر ورکوي.

تنبیه: ځینو د ﴿قَیِّمًا﴾ معنی په «مستقیم» سره کړې ده، او دا یې د پخواني مضمون تأکید مقرر کړی دی، یعنې هومره غور چې وکړئ د یوه ویښته په اندازه هم کوږوالی به په هغه کې ونه مومئ، مګر (فراء) د دې لفظ معنی داسې ورکړې ده: «قیّما علی الکُتب السماویة»، «د ګردو سماویه وو کتابونو په تصدیق او صحت مهر لګوونکی دی، او د هغو د اصولي تعلیماتو په دنیا کې قایم ساتونکی دی»، او مسلم وایي: «قیّما بمصالح العباد»، «د ګردو بندګانو د ټولو مصالحو متکفّل دی، او د دوی د معاش او د معاد رغوونکی دی»، په هر حال هره معنی چې ترې واخیسته شي؛ د هغه په صداقت کې هیڅ د شبهې ځائ نشته.

وَّ یُبَشِّرَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ الَّذِیۡنَ یَعۡمَلُوۡنَ الصّٰلِحٰتِ اَنَّ لَهُمۡ اَجۡرًا حَسَنًا ۙ﴿۲﴾ مَّاکِثِیۡنَ فِیۡهِ اَبَدًا ۙ﴿۳﴾

او زېری ورکړي (محمد) مؤمنانو ته، هغو ته چې کړي دي دوی ښه (عملونه) چې بېشکه شته دوی ته اجر ښه (چې جنت دی). حال دا چې اوسېدونکي به وي په هغه (جنت کې) تل تر تله.

**تفسير:** په ظاهر سره له دې نه د آخرت بدل يعنې جنّت مراد دی، چې هلته به قانتينو مؤمنينو ته دائمي خوښي او ابدي راحت ور په برخه کيږي.

وَّيُنۡذِرَ الَّذِيۡنَ قَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا ﴿۴﴾

او چې وويروي هغه کسان چې وايي (له ډېره جهله) نيولی دی الله ولد.

**تفسير:** د الله تعالی لپاره د اولاد په تجويز کې له ګردو څخه وړاندې او سابق القدم «نصاری» دي، او لکه چې له احاديثو څخه ظاهريږي، له همدغو سره به د قرآن د عاملينو او حاملينو علاقه او سابقه تر قيامت پورې وي، بيا هم د الفاظو په عموم کې به ځينې هغه يهودي فرقې چې عُزير عليه السلام ته د الله ځوی يا ځينې هغه مشرکين چې «ملائکة الله» ته د الله لونې ويلې؛ هم داخل دي، ګواکې دلته د اولاد تجويز کوونکو کافرانو ته بالخصوص او نصاراوو ته په أخصّ الخُصوص سره تنبيه ورکړی شوی ده.

مَا لَهُمۡ بِهٖ مِنۡ عِلۡمٍ وَّلَا لِاٰبَآئِهِمۡ ؕ كَبُرَتۡ كَلِمَةً تَخۡرُجُ مِنۡ اَفۡوَاهِهِمۡ ؕ اِنۡ يَّقُوۡلُوۡنَ اِلَّا كَذِبًا ﴿۵﴾

نشته دوی ته په دې خبره کې هيڅ علم، او نه پلرونو د دوی ته (څه علم شته)، لويه ده هغه خبره (د دوی) چې راووځي له خولې د دوی څخه، نه وايي دوی مګر دروغ (ډېر غټ).

**تفسير:** يعنې کوم تحقيق او علمي اصول د دوی په لاس کې نشته، او نه د دوی د پلرونو او نيکونو په لاسونو کې وو، چې د هغوی په عمياء تقليد سره داسې غټې خبرې له خپلو خولو څخه راوباسي.

فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّـفۡسَكَ عَلٰٓى اٰثَارِهِمۡ اِنۡ لَّمۡ يُؤۡمِنُوۡا بِهٰذَا الۡحَـدِيۡثِ اَسَفًا ﴿۶﴾

نو ښايي چې ته قتل کوې (وژنی) نفس (ځان) خپل پر وروستو (د ګرځېدو) د دوی (له تا نه) (يا په دوی پسې) که رانه وړې (دوی) ايمان په دې خبره (قرآن؛ نو ته ځان وژنې) له ډېره غمه.

**تفسير:** يعنې که دغه کافران قرآني خبرې نه مني؛ نو تاسې د دوی په چرت او غم کې خپل ځان مه کړوئ ! او مه ويلې کيږئ ! تاسې د تبليغ او دعوت فريضه اداء کړې او کوئ يې، که يې څوک نه قبلوي؛ نو تاسې لره نه ښايي چې خپل ځان دومره وکړوئ او دومره غمجن شئ !.

اِنَّا جَعَلۡنَا مَا عَلَى الۡاَرۡضِ زِيۡنَةً لَّهَا لِنَبۡلُوَهُمۡ اَيُّهُمۡ اَحۡسَنُ عَمَلًا ﴿۷﴾

بېشکه مونږ ګرځولي مو دي هر هغه څيز چې دی پر ځمکه زينت (ښايست رونق) لپاره د دې (ځمکې او اهل د ځمکې)، لپاره د دې چې ازموينه وکړو پر دوی چې کوم يو له دوی څخه ډېر غوره دی له جهته د عمل.

**تفسير:** يعنې د هغه د رونق په طرف منلېږې وهي، يا هغه پرېږدي او آخرت اخلي.

وَاِنَّا لَجٰعِلُوۡنَ مَا عَلَيۡهَا صَعِيۡدًا جُرُزًا ﴿۸﴾

او بېشکه چې مونږ خامخا ګرځوونکي يو د هر هغه څيز چې پر دغه (ځمکه دی) ډاګ (صاف ميدان) وچ کلک.

تفسير: يعنې يوه ورځ به دغه ګردې ونې، واښه، شينکي او نور د ځمکې موجودات ټولولی شي، او د ځمکې څخه تش تور ډاګ ډېر ميدان جوړيږي، هغه کسان چې د دې په ښايست او ډول سينګار خوښ او غوليږي، هغوی دې ښه وپوهيږي چې دغه زرق او برق، ډول او ډيل، پرق او پړوق پاتې کېدونکی شی نه دی.

﴿أَمْ حَسِبْتَ أَنَّ أَصْحَابَ الْكَهْفِ وَالرَّقِيمِ كَانُوا مِنْ آيَاتِنَا عَجَبًا﴾⁹

آيا ګمان کوې ته (اى محمده !) د دې خبرې چې صاحبان د غار او د تختې وو دوی له دلائلو ځمونږ ډېر عجيبه.

تفسير: يعنې د الله د عظيمه قدرت په لحاظ د ﴿أَصْحَابَ الْكَهْفِ﴾ قصه چې وروسته يې ذکر راځي، داسې کومه عجيبه او غريبه خبره نه ده چې يې له حده زياته عجيبه وګڼئ، د ځمکې، اسمان، لمر، سپوږمۍ، ستوري، اور، اوبه، او نورو شيانو پيدا کول، او د دوی ټينګ نظام قائمول، د ضعيف البنيان انسان فضيلت پر ګردو موجوداتو، بيا په انسانانو کې د انبياوو عليهم السلام رالېږل د دوی قليل او بې سرو سامانو ډلو پر لويو لويو متکبّرانو بريالي او فاتح کول، د خاتم الأنبياء محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم او د ده د رفيق ابو بکر صديق رضي الله تعالی عنه نجات د کفارو د مکر او فرېب څخه او د (ثور) په غار کې تر دريو ورځو پورې د دوی دواړو صحيح او سالم ساتل، او د کفّارو تعاقب او د غار (سمڅې) تر خوله پورې راتلل او بيا نامراده او بې د مرام له نيله بېرته ګرځېدل، بالآخر د مسلمانانو هغه ډېرې وړوکی بې سر و سامان ډلې ته نه يواځې په «جزيرة العرب» بلکه په مشرق او مغرب کې په ډېر لږ مدّت کې غلبه، نصرت او برى په برخه کول، آيا دغو او د دوی په شان نور بېشماره شيان د ﴿أَصْحَابَ الْكَهْفِ﴾ له قصې څخه لږ حيرت او تعجب راوړونکي دي؟ !.

اصل دا دی چې يهودانو قريشو ته مشوره ورکړه چې د محمد صلی الله عليه وسلم څخه د امتحان او ازموينې په ډول درې سواله وکړې: (۱) روح څه شی دی؟ (۲): د ﴿أَصْحَابَ الْكَهْفِ﴾ قصه څرنګه ده؟ (۳) د ذو القرنين قصه څه وه؟، د ﴿أَصْحَابَ الْكَهْفِ﴾ قصې ته دوی د عجيبتوب له حيثيته خاص اهميت ورکړی وو، نوځکه په دغه آيت کې دا ښوولې شوې ده چې د هغه دومره عجيبه نه ده لکه چې تاسې يې ګڼئ، د هغه څنې ډېرې نورې عجيبې او غريبې د قدرت دلائل او نښې هم شته، وروسته د ﴿أَصْحَابَ الْكَهْفِ﴾ مجملاً بيا مفصّلاً بيان فرمايي.

وايي چې دغه څو ځلميان د (روم) د کوم ظالم او جبّار باچا په زمانې کې وو، چې د هغه اسم ځينو «دقيانوس» ښوولی دی، باچا ډېر سخت غالي بُت پرست وو، او په جبر او اکراه سره د بت پرستی په تعميم او اشاعت کې مصروف وو، عامو خلقو د تکليف او سختۍ او خوف او د څو ورځو دنيوي منافعو په طمع خپل مذاهب پرېښودل او بُت پرستي يې اختيار کړه، په دغه وخت کې د څو تنو هغو ځلميانو په زړونو کې چې د هغوی تعلّق د سلطنتي عمائدو سره وو، داسې خيال پيدا شو چې د يوه مخلوق له خاطره د خالق ناراضي نه ده پکار، او د دوی زړونه د الله تعالی له خشيته او د تقوی له نوره ډک وو، الله تعالی دوی د صبر او استقلال او د توکل او مېړانې له دولت څخه ماړه کړي وو، دوی د باچا په مخ کې ودرېدل، او په ډېر جسارت او مېړانې (بهادرۍ) يې دغسې نارې کړې: ﴿لَنْ نَدْعُوَا مِنْ دُونِهِ إِلَٰهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا﴾ او د دغه خپل ايماني جرأت او استقلال د مظاهرې څخه يې ګرد ليدونکي او اورېدونکي سره مبهوت او متحيّر کړل.

باچا څه د دوی پر ځلميتوب رحم وکړ، او څه د نورو مشاغلو او ملکي مصالحو لامله د دوی د فوري وژلو څخه سترګې پټې کړې، او څو ورځې يې دوی ته مهلت ورکړ، څو دوی پخپلې دغې معاملې کې غور او نظر ثاني وکړي.

خو دغو ځلميانو داسې مشوره سره غوټه کړه، چې په داسې د فتنې په وخت کې چې مونږ د جنګ او د تشدّد له لاسه عاجزان شوي يو، او په هر حال کې ځمونږ د قدمونو د ښويېدلو وېره او خطره شته؛ نو مونږ ته به دغه مناسبه وي، چې ښار ته نژدې د غره په کوم غار کې پټ او منتظر اوسو، چې په مناسبه موقع کې بيا له هغه ځايه ووځو، نو يې دعاء

و کړه چې: «ای الله ! ته پخپل خصوصي رحمت سره څمونږ کار راجوړ کړه ! او د رشد او هدایت په لارې د تللو ګرد انتظام مونږ ته وکړه !».

بالآخر دوی له ښاره ووتل، او په کوم نژدې غره کې يې پناه ونيوله، او له خپلو ملګرو څخه يو تن يې مأمور کړ، چې د لباس په تغيير سره کله ناکله ښار ته ورځه ! او څمونږ د ټولو ضروريات او حوائج د ښار د حال او احوال سره راوړه ! او مونږ د هغه ځای له اخبارونو څخه مطلع کړه ! کوم سړی چې پر دغه کار مامور وو، هغه يوه ورځ اطلاع ورکړه چې نن په ښار کې رسماً څمونږ تعقيب او پلټنه کېږده، او څمونږ اقارب اعزّه او خپلوان مجبور شوي وو، چې څمونږ پته او سراغ وروښيي، دوی په همدغو مظاهرو کې وو، چې يو ناځاپه الله تعالی پر دوی خوب طاري کړ، ويلې کيږي چې د حکومت سړو ډېر تلاش او پلټنه (لټون) وکړه؛ خو د دوی درک او سراغ يې ونه موند، او ستړي ستومانه کېناستل.

بالآخر د باچا له رايې سره سم د ښيښې پر يوه تخته د دې ځلميانو نومونه او مميّزه صفات او نور مناسب احوال وليکل او په يو محفوظ ځای کې کېښود شو، څو تل د دولت اراکين، مامورين او راتلونکې نسل په دې خبردار وي، چې داسې د ځلميانو يوه ډله په حيرت راوړونکې طريقې تښتېدلې ده، چې سره له ډېر لټولو د هغې ډلې هيڅ نښه او اثر نه دی پيدا شوی، ممکن دی چې وروسته له دې نه د هغو سراغ او پته پيدا او ځينې نور عجيب او غريب واقعات هم څرګند شي.

دغه ځلميان پر کوم مذهب (دين) وو؟ په دغه کې اختلاف دی، ځيني وايي چې نصرانيان يعنې د مسيح عليه السلام د اصلي دين تابعان وو، ليکن ابن کثير (رحمه الله تعالی) د قرائنو له مخې دې ته ترجيح ورکړې ده، چې د ﴿اَصۡحٰبَ الۡكَهۡفِ﴾ قصه د مسيح عليه السلام د زمانې څخه پخوانی قصه ده، و الله أعلم.

**تنبيه:** «رقيم» د غره کندې او سوري ته وايي، او «رقيم» د «مرقوم» په معنی هم راځي، يعنې ليکلی شوی شی.

إِذۡ أَوَى ٱلۡفِتۡيَةُ إِلَى ٱلۡكَهۡفِ فَقَالُواْ رَبَّنَآ ءَاتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحۡمَةً وَهَيِّئۡ لَنَا مِنۡ أَمۡرِنَا رَشَدًا ﴿١٠﴾
فَضَرَبۡنَا عَلَىٰٓ ءَاذَانِهِمۡ فِي ٱلۡكَهۡفِ سِنِينَ عَدَدًا ﴿١١﴾

ياد کړه هغه وخت چې رجوع وکړه هغو ځلميانو (د وېرې د کفّارو) غار ته نو وويل دی: ای ربه څمونږ ! راکړه مونږ ته له خپله نزده رحمت (چې پرې پټ شو له غليمه «دښمنه») او تيار کړه مونږ ته له دې کاره څمونږ (چې مفارقت د کفارو دی) هدايت. او کېښوده مونږ (پرده) پر غوږونو د دوی (چې هيڅ غږ يې نه اورېد او ويده پراته وو) په غار کې څو کاله په شمېر.

**تفسير:** يعنې داسې يې پر غوږونو وټپول چې تر کلونو کلونو پورې په همغه سوري کې ويده پراته وو، او د دې خوا او هغې خوا له احواله له سره نه وو خبر، او نه کومه خبره د دوی غوږونو ته رسېده.

ثُمَّ بَعَثۡنَٰهُمۡ لِنَعۡلَمَ أَيُّ ٱلۡحِزۡبَيۡنِ أَحۡصَىٰ لِمَا لَبِثُوٓاْ أَمَدًا ﴿١٢﴾

بيا راپورته کړل مونږ دوی لپاره د دې چې ښکاره کړو چې کومه يوه له دغو دواړو ډولو (مختلفو په ځنډ کې) ښه حساب کوونکې ده د هغه چې دوی څه مدّت تېر کړی وو (په دغه غار کې).

**تفسير:** له ډېرو کلونو څخه وروسته الله تعالی دوی ويښ کړل، څو ظاهر شي چې د اختلاف کوونکو په منځ کې کوم يو د دوی د نوم د مدّت صحيح اندازه ښوولی شي؟ ظاهر دی چې د داسې اوږده خوب څخه وروسته کله چې دوی ويښ شوي دي؛ نو په قدرتي طور سره پخپله د خوب کوونکي او ګردو ليدونکو په منځ کې راز راز خبرې سره مبادله کيږي، او ځينې يې مدّت لږ ښيي، او ځينې يې ډېر څرګندوي (ښکاره کوي)، يو به اقرار کوي، او بل به يې مستبعد

ګڼي ترې انکار کوي، نو دوی یې راوېښ او دا یې ورونښوده چې کوم یو جماعت سم له حقیقت سره سمې خبرې کوي؟ او واقعیت ته نژدې دي؟ او وروسته د دې حقیقت له پوهېدلو سره د «بعث بعد الموت» عُقده حل کولی شي؟ چې په هغه کې د هغې زمانې خلقو سره جګړې کولې.

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُم بِالْحَقِّ ۚ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ﴿١٣﴾

مونږ قصه کوو تا ته خبر حال د دوی په حقه (رښتیا) سره، بېشکه دوی داسې ځلمیان دي چې ایمان لري په رب خپل، او زیات کړي وو مونږ دوی له جهته د هدایته.

وَرَبَطْنَا عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَن نَّدْعُوَ مِن دُونِهِ إِلَٰهًا ۖ لَّقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا ﴿١٤﴾

او ټینګک تړلی دی مونږ پر زړونو د دوی (قوّت او صبر) کله چې پاڅېدل، نو وویل دوی: رب ځمونږ رب د اسمانونو او د ځمکې دی، له سره به عبادت ونه کړو بې له همغه الله د بل معبود (او که بل څوک مو په الوهیت سره وباله؛ نو) خامخا په تحقیق ویلی به وي مونږ هلته خبره خطا لویه دروغه.

تفسیر: یعني زړونه مو قوي کړي وو په قبول او اظهار د حق سره، او دوی مضبوط او ثابت قدم کېښود او خپله خبره یې صافه وویله: کله چې «رب» هغه دی؛ نو د بل چا معبود درول حماقت دی، «ألوهیت» او «ربوبیت» دواړه همده ته وړ (لایق) او مخصوص دي.

هَٰؤُلَاءِ قَوْمُنَا اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ آلِهَةً ۖ لَّوْلَا يَأْتُونَ عَلَيْهِم بِسُلْطَانٍ بَيِّنٍ ۖ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا ﴿١٥﴾

دا کسان قوم ځمونږ نیولي دي دوی بې له الله (نور باطل) معبودان، ولې نه راوړي دوی په (عبادت د باطلو معبودانو) کوم برهان سند ښکاره؟، نو څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې تړي پر الله دروغ (چې شریکان ورته دروي، بلکه لوی ظالم له ده څخه بل نه دی).

تفسیر: لکه چې موحّدین د توحید صاف صاف دلائل وړاندې کوي، که مشرکین هم پخپله دعوی کې رښتین وي؛ نو کوم واضح دلیل ولې نه وړاندې کوي؟ که یې وړاندې کړي؛ نو له کومه به یې راوړي؟ دروغ پښه نه لري، له دې نه به لوی دروغ څه وي چې دوی د الله تعالی لپاره شریک دروي.

کله چې دقیانوس أصحاب الکهف ته درې ورځې مهلت ورکړ، او دوی پخوا د تماموېدلو د درې ورځو وتښتېدل؛ نو (یملیخا) چې مشر د دوی وو په منځ د لارې کې یې وویل خپلو ځینو نورو ځلمیانو ته داسې:

وَإِذِ اعْتَزَلْتُمُوهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ فَأْوُوا إِلَى الْكَهْفِ يَنشُرْ لَكُمْ رَبُّكُم مِّن رَّحْمَتِهِ وَيُهَيِّئْ لَكُم مِّنْ أَمْرِكُم مِّرْفَقًا ﴿١٦﴾

او کله چې په څنګک شوئ تاسې له دغو مشرکانو او له هغو (بُتانو) چې عبادت یې کوي دوی بې له الله؛ نو ځای ونیسئ تاسې هغه غار ته (او دېره شئ په کې)، خپور به کړي تاسې ته رب د تاسې له رحمته خپل او تیار به کړي تاسې ته له کار ستاسې اسباب د ګزران (او خوشالی).

تفسیر: یعنې «کله چې د مشرکانو له دینه مونږ بېل یو؛ نو په ظاهري ډول سره هم مونږ ته لازم دي، چې له هغوی څخه بېل اوسو، او کله چې د دوی له باطلو معبودانو څخه ګوښه شو؛ نو ښایي چې له هر طرفه وشکوو، او خاص خپل لوی الله جلّت عظمتُه په طرف رهي (لاړ) شو، او د هغه رحمت او تلطّف ته امیدواري ولرو»، پخپلو منځونو کې یې سره داسې مشورې وکړې، په پای کې لاړل او د غره په سمڅې کې کښېناستل.

وَتَرَى الشَّمْسَ إِذَا طَلَعَت تَّزَاوَرُ عَن كَهْفِهِمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَإِذَا غَرَبَت تَّقْرِضُهُمْ ذَاتَ الشِّمَالِ وَهُمْ فِي فَجْوَةٍ مِّنْهُ ۚ ذَٰلِكَ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ ۗ مَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ ۖ وَمَن يُضْلِلْ فَلَن تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُّرْشِدًا ﴿١٧﴾

او وینې به ته لمر کله چې راخیژي نو میلان کوي له غاره د دوی ښې طرف ته، او کله چې لویږي؛ نو پرېږدي دوی (اوترې تېرېږي) کیڼ طرف ته، او دوی په ارت میدان کې دي له دې غاره، دغه (مذکوره احوال د دوی) له دلائلو او ښو د الله دي، هر چا ته چې سمه صافه لاره وروښوده الله؛ نو همغه دی د سمې صافې لارې موندونکی، او هر څوک چې ګمراه یې کړي (الله)؛ نو له سره به نه مومې ته ده ته کوم ولي دوست لاره ښوونکی.

تفسیر: یعنې الله تعالی پخپل کامل قدرت سره دوی ته د داسې دېره ځای په لوري لار ښوونه وکړه چې هلته مأمون او مطمئن شول، او په آرامی او خوشالی سره پرېوتل، نه د ځای د تنګوالي څخه د دوی زړونه خفه وو، او نه لمر دوی ته څه ربړ او تکلیف رسوه، د دې لامله چې د دغه سوري مخ د شمال په لوري او په هسې یوه وضع او هیئت سره واقع وه، چې د ضرورت په اندازه به لمر ورته رسېده، او بې د څه ضرر د رسولو څخه به ترې وته.

﴿مَن يَهْدِ اللَّهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ﴾ الآیة ـ یعنې ظاهري او باطني لاره ښوونه ګرد د ده په قبضه کې ده، وګوره څه مهال (وخت) چې ګرده دنیا سره ښویېدلې وه، «أصحاب الکهف» یې څرنګه د هدایت په لاره ټینګ او ثابت قدم کړل، او په ظاهري ډول یې هم څرنګه د یوه عجیبه سوري په طرف د دوی لار ښوونه وکړه.

وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ ۚ وَنُقَلِّبُهُمْ ذَاتَ الْيَمِينِ وَذَاتَ الشِّمَالِ ۖ وَكَلْبُهُم بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ بِالْوَصِيدِ ۚ لَوِ اطَّلَعْتَ عَلَيْهِمْ لَوَلَّيْتَ مِنْهُمْ فِرَارًا وَلَمُلِئْتَ مِنْهُمْ رُعْبًا ﴿١٨﴾

او ته به ګمان کوې په دوی (که چېرې یې ووینې) چې ویښ دي حال دا چې دوی ویده دي، او اړوو دوی په ښې اړخ او کیڼ اړخ او سپی د دوی غځوونکی دی د دواړو څنګلو خپلو په خولې د غار کې، که چېرې ورپورته شې ته دوی ته او نظر واچوې پر دوی؛ نو خامخا مخ به وګرځوې ته له دوی څخه په تېښته او خامخا ډک به کړی شې ته له دوی نه له وېرې.

تفسیر: وایي چې د دوی سترګې به د خوب په وخت کې هم خلاصې وې، او د دومره یو طویل خوب هیڅ یو اثر د دوی پر بدنونو نه ښکارېده، نو ځکه هر چا به چې دوی ته کاته؛ نو داسې یې ګاڼه چې دوی ویښ دي، او الله تعالی دغو ویدو ځلمیانو ته شان، هیبت او جلال وروباښه، او دوی دغه د هستوګنې ځای ته یې دومره دهشت او عظمت ورکړ چې هیڅا به ورته نشو کتلی، او نه به ورنژدې کېدلی شو، څو خلق د هغه د ځای څخه ننداري جوړې نه کړي، او هلته بنداري ونه ترې، او دوی ناآرامه او بې هوسا (بې آرامه) نه کړي، د دوی پسې یو سپی هم رهي (روان) شوی وو، چې د دغو نېکانو اثر پر دغه سپي هم ورسېده، او تر سلهاوو کلونو پورې ژوندی پاتې شو.

وَكَذٰلِكَ بَعَثۡنٰهُمۡ لِيَتَسَآءَلُوۡا بَيۡنَهُمۡ ؕ قَالَ قَآئِلٌ مِّنۡهُمۡ كَمۡ لَبِثۡتُمۡ ؕ قَالُوۡا لَبِثۡنَا يَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ
يَوۡمٍ ؕ قَالُوۡا رَبُّكُمۡ اَعۡلَمُ بِمَا لَبِثۡتُمۡ ؕ فَابۡعَثُوۡۤا اَحَدَكُمۡ بِوَرِقِكُمۡ هٰذِهٖۤ اِلَى الۡمَدِيۡنَةِ فَلۡيَنۡظُرۡ
اَيُّهَاۤ اَزۡكٰى طَعَامًا فَلۡيَاۡتِكُمۡ بِرِزۡقٍ مِّنۡهُ وَلۡيَتَلَطَّفۡ وَلَا يُشۡعِرَنَّ بِكُمۡ اَحَدًا ﴿١٩﴾ اِنَّهُمۡ
اِنۡ يَّظۡهَرُوۡا عَلَيۡكُمۡ يَرۡجُمُوۡكُمۡ اَوۡ يُعِيۡدُوۡكُمۡ فِىۡ مِلَّتِهِمۡ وَلَنۡ تُفۡلِحُوۡۤا اِذًا اَبَدًا ﴿٢٠﴾

او همداسې (لکه چې ویده کړي وو مونږ أصحاب الکهف) ویښ کړه مونږ دوی چې پوښتنه وکړي پخپلو منځونو کې، نو وویل یو ویونکي له دوی نه چې: څومره مدّت مو تېر کړی دی؟ نو وویل (ورته دغو نورو چې) تېره کړې ده مونږ یوه ورځ یا یوه برخه د ورځې، وویل (نورو) چې رب ستاسې ښه خبر دی په هغه مدّت چې تېر کړی دی تاسې، نو ولېږئ تاسې یو (ملګری) خپل په دې سپینو زرو ستاسې چې دا دي دې ښار ته، نو ودې ګوري چې کوم یو له دغه (اهل د ښار) نه ښه پاکیزه دی له جهته د طعامه، نو رادې وړي تاسې ته رزق له هغه، او نرمي او زیرکي دې کوي (په معامله کې)، او نه دې خبروي خامخا په تاسې هیڅ یو هم. بېشکه دوی که خبردار (یا قادر) شي پر تاسې؛ نو سنګسار به کړي تاسې، یا به بېرته وګرځوي دوی تاسې په دین خپل کې، او له سره به خلاص نشئ تاسې (او ښه به ونه مومئ) په دغه وخت کې هیڅکله.

تفسیر: یعنې څرنګه یې چې پخپل قدرت سره دوی په داسې یوه اوږده خوب کې ویده کړي وو؛ همغسې یې دوی په مقرّر وخت کې راویښ کړل، کله چې پاڅېدل نو پخپلو منځونو کې یې سره په مذاکرو شروع وکړه، چې مونږ به څومره مدّت ویده شوي یو؟ ځینو وویل: «یوه یا نیمه ورځ»، یعنې ډېر لږ ویده شوي یو، بل وویل چې په دغه خو د الله تعالی علم ډېر ښه رسېږي چې مونږ څومره مدّت ویده شوي یو، اوس کار کوئ، یو سړي ته پیسې ورکړئ، او ښار ته یې ولېږئ چې له کوم دکان څخه حلال او طیّب طعام واخلي، او رایې وړي مګر دغه ضروري ده چې دغه سړی دې په ډېرې هوښیارۍ سره لاړ شي، او بېرته دې راشي او په نرمۍ او تدبیر سره دې ښایي معامله وکړي چې هیڅ یوه ښاري ته څمونږ پته او ښه څرګنده (ښکاره) نشي، که نه لویه خرابي به راپېښېږي، که هغه ظالم باچا پر مونږ خبردار شي؛ نو مونږ به سنګسار کړي، یا به مونږ په جبر او اکراه سره له دغه حقّاني دین څخه واړوي، (العیاذ بالله) که داسې کومه واقعه راپېښه شوه؛ نو هغه اعلی کامیابي او فلاح چې مونږ یې غواړو له سره نه حاصلېږي، ځکه چې د حق دین څخه اوښتل اګر که په جبر او اکراه سره هم وي؛ د اولوا العزم مؤمنانو کار نه دی.

وَكَذٰلِكَ اَعۡثَرۡنَا عَلَيۡهِمۡ لِيَعۡلَمُوۡۤا اَنَّ وَعۡدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَّاَنَّ السَّاعَةَ لَا رَيۡبَ فِيۡهَا ۚ اِذۡ يَتَنَازَعُوۡنَ
بَيۡنَهُمۡ اَمۡرَهُمۡ فَقَالُوا ابۡنُوۡا عَلَيۡهِمۡ بُنۡيَانًا ؕ رَبُّهُمۡ اَعۡلَمُ بِهِمۡ ؕ قَالَ الَّذِيۡنَ غَلَبُوۡا عَلٰٓى اَمۡرِهِمۡ
لَنَتَّخِذَنَّ عَلَيۡهِمۡ مَّسۡجِدًا ﴿٢١﴾

او همداسې (لکه چې مو ویښ کړي وو دوی) خبر کړ مونږ (خلق) پر دوی باندې چې پوه شي (دغه د حشر منکران چې) بېشکه وعده د الله حقه ده، او بېشکه قیامت (چې دی) نشته هیڅ شک په (راتلو د) هغه کې، (او خبر کړل مونږ دغه خلق په أصحاب الکهف) کله چې جګړې کولې دوی په منځ خپل کې په کار خپل، نو وویل: (دغو خلقو یو بل ته) چې جوړه کړئ پر دوی یو بناء، رب د دوی ښه عالم دی په (احوال د دوی)، وویل هغو کسانو چې غالب وو په کار د دوی چې: خامخا جوړ به کړو مونږ هرومرو پر دوی باندې مسجد (چې لمونځ په کې وکړی شي).

**تفسير:** يوه له دوى څني پيسې واخيستې او ښار ته ننوت، خو د ښار ګرد شيان د ده په نظر کې پردي او غير متعارف ښکاره شول، په دغه مدّت کې څو قرنه تېر شوي وو، د ښار خلق د دغو پيسو د سکو د ليدلو څخه حيران شول، چې پر دې د کوم باچا نوم دی؟ او د کومې زمانې دي؟ او ګرد سره داسې وپوهېدل چې دغه سړي له کوم ځايه کومه قديمي خښه کړې خزانه موندلې ده، څو دغه خبره د باچا په غوږ کې ورسېده، او هغه همغه پخوانۍ ليکلي تخته وغوښته، چې پر هغه څو نومونه او مميزه صفتونه ليکلي شوي وو، او دغه هم په کې مسطور وو، چې دغه ځلميان يو ناځاپه په دغه کال کې لادرکه او تري تم شول، له تحقيقه ثابته شوه چې دغه سړی د همغه مفقود الخبر ډلې څخه دی، په دغه وخت کې په دغه ښار کې د «بعث بعد الموت» په نسبت سخته جګړه نښتې وه، چا به ويل چې: د مړ کېدلو څخه وروسته بيا ژوندون نشته، چا به ويل چې: محض روحاني بعث دی او جسماني نه دی، څوک د روحاني او د جسماني د دواړو معادو قائل وو، د دې وخت باچا يو حق خوښوونکی منصف سړی وو، او غوښته يې چې له يو طرف کوم داسې نظير او مثال په لاس ورشي چې په هغه سره پوهول آسان شي، او عقلي استبعاد له منځه ورک شي، پاک الله دغه نظير ورپيدا کړ، بالآخر د آخرت منکران هم د دې حيرت راوړونکي ماجرى له ليدلو او اورېدلو سره په آخرت متيقّن شول، او دغې نظارې په خاص ډول سره د دوی پر طبائعو اثر وغورځاوه، او وپوهېدل چې په دې سره الله تعالى مونږ ته تنبيه راکړه، ځکه چې دغه قصه د دوهم ځلي بيا ژوندي کېدلو څخه له سره کمه نه ده.

**تنبيه:** ځينو د ﴿إِذْ يَتَنَٰزَعُونَ بَيْنَهُمْ أَمْرَهُمْ﴾ مطلب داسې اخيستی دی، چې الله تعالى د «أصحاب الکهف» له حاله په هغه وخت کې خلق خبر کړي وو، نو ځکه د «أصحاب الکهف» په نسبت جګړو او مناقشو جريان درلود، چې هغه څو تنه ځلميان چې يو ناځاپه سره ورک او تري تم شوي وو چېرې لاړل؟ چې د هغوی په نسبت له ډېرې اوږدې زمانې راهيسې داسې اورو چې راځي، ولې رانغلل؟دوی چېرته لاړل؟ د دوی نسل به چېرې منتشر شوی وي؟ تر اوسه پورې دوی نه دي ژوندي پاتې، او ضرور ګرد سره مړه او خاورې شوي دي، په دغه مسئله کې به ځينو يو شی او ځينو بل شی ويل، چې يو ناځاپه الله تعالى د حقيقت له مخې پرده پورته کړه، او هغه ګرد اختلافات يې سره ورک کړل.

﴿فَقَالُوا ابْنُوا عَلَيْهِم بُنْيَانًا﴾ الآية ـ دغه نه دي معلوم چې وروسته له هغه «أصحاب الکهف» همغسې ژوندي پاتې شول؟ يا يې انتقال وکړ؟ که انتقال يې کړی دی څه مهال (وخت) وو؟ او که ژوندي پاتې دي تر کله؟ يا به تر کله ژوندي پاتې کيږي؟ په هر حال د هغه ښار خلقو چې دغه سوري ته نژدې په کوم مناسب ځای کې د يادونې په شان کوم عمارت جوړ کړی، چې له هغه څنې زائرينو ته څه سهولت پېښ شي؛ نو په دغه کې به د آراوو اختلاف واقع شوی وي، چې څه قسم عمارت جوړ کړ شي، د دغو اختلافاتو تفصيلات خو پاک الله ته ښه معلوم دي، او دغه هم د ده په علم کې شته چې دغه تجويز د دوی له موت څخه وروسته وشو؟ يا پخوا له موته؟ يا د دوهم ځلي د خوب طاري کېدلو څخه وروسته؟ آيا خلق تر هغه سوري پورې رسيدلي دي؟ او د دوی په ملاقات يا زيارت مشرف شوي دي؟ که نه؟ خو بيا هم هغو بارسوخو او بااقتدارو سړيو چې د «أصحاب الکهف» پر اسلامي دين وو داسې سره غوټه کړه چې دغه غار ته نژدې يو معبد تعمير شي، د أصحاب الکهف په نسبت برسېره پر دې چې پاخه موحدان او متقيان وو، ليکن هغه کسان چې پر دوی معتقدان شوي او عمارت يې جوړ کړی وو نصرانيان وو، ابو حيّان په «بحر محيط» کې د «أصحاب الکهف» د ځای د متعين کولو په نسبت متعدد اقوال نقل کړي دي، من شاء فليراجعه.

سَيَقُولُونَ ثَلَٰثَةٌ رَّابِعُهُمْ كَلْبُهُمْ وَيَقُولُونَ خَمْسَةٌ سَادِسُهُمْ كَلْبُهُمْ رَجْمًۢا بِٱلْغَيْبِ

ژر به وايي (يعقوبيه چې دوی) درې دي څلورم د دوی سپی د دوی دی، او وبه وايي (نسطوريه چې دوی) پنځه دي شپږم د دوی سپی د دوی دی، ويشتل په غيب سره، (دا ټولې وينا ګانې دي بې دليله).

تفسير: يعني سامعين به د «أصحاب الكهف» د قصې له اوريدلو څخه وروسته لکه چې د خلقو عادت دی اټکلي غشي ولي، يو به وايي چې دوی درې وو، څلورم د دوی سپی وو، بل به وايي چې دوی پنځه وو او شپږم به سپی ښيي، ليکن دغه ګرد اقوال داسې دي لکه چې څوک بې د نښې له ټاکلو څخه تيرې (ګټې) وولي، ممکن دی د دغو مختلفو خبرو په ويلو کې برسېره په جهل، د رسول الله صلى الله عليه وسلم امتحان هم مقصود وي، چې وګورو محمد صلى الله عليه وسلم په دغه معامله کې څه فرمايي؟ ځکه احتمال لري چې يهودانو د هغو صحيح تعداد اوه ښوولی وي، چې د هغه په طرف لوی قرآن هم اشاره فرمايي:

﴿وَيَقُولُونَ سَبْعَةٌ وَثَامِنُهُمْ كَلْبُهُمْ ۚ قُل رَّبِّي أَعْلَمُ بِعِدَّتِهِم مَّا يَعْلَمُهُمْ إِلَّا قَلِيلٌ ۗ فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ إِلَّا مِرَاءً ظَاهِرًا وَلَا تَسْتَفْتِ فِيهِم مِّنْهُمْ أَحَدًا ﴿٢٢﴾﴾

او وبه وايي (مؤمنان په اخبار د محمد چې دوی) اوه دي او اتم د دوی سپی د دوی دی، ووايه (ای محمده! دوی ته) رب ځما ښه علم لري په شمېر د دوی، نه پوهيږي په (شمېر د) دوی مګر لږ (د خلقو)، نو جګړه مه کوه (ای محمده!) په باب د دوی کې مګر جګړه ښکاره، او فتوی مه غواړه په باب د دغو کې له دغو (کتابيانو) څخه له هيڅ يو (ځکه چې ته پخپله پرې خبر يې په وحيه سره).

تفسير: د عدد په معلومولو پورې کوم اهم مقصود نه دی متعلق، هومره خبره چې الله تعالى راښودلې ده، له هغې څخه د زيات تحقيقاتو پسې لوېدل او هغومره ترديد چې الله تعالى فرمايلی دی، له هغه څخه زيات ترديد او جګړې ښنلول؛ فضول دي.

ابن عبّاس رضي الله تعالى عنه فرمايي: زه د هغو قليلو کسانو څخه يم (چې هغوی د قرآني سياقه معلوم کړی دی چې) أصحاب الكهف هم دغه اوه تنه دي، ځکه چې الله تعالى هغو پخوانيو دواړو اقوالو ته ﴿رَجۡمَۢا بِٱلۡغَيۡبِ﴾ وفرمايه، او دريم قول سره يې ونه فرمايل، علاوه پر دې د بيان اسلوب هم بدل شوی دی، په پخوانيو دواړو جملو کې «عطفيه واو» نه وه، او په دريم کې شته، او د ﴿وَثَامِنُهُمۡ كَلۡبُهُمۡ﴾ په عطف سره له راوړلو څخه ګواکې دغه خبرې ته زور ورکول مقصود دي، چې د دغه قول قائل په پوره بصيرت او وُثوق سره د واقعې له تفصيله واقف دی، ځينو د دې په تأييد کې دا هم ويلي دي چې: پخوا له دې نه له ﴿قَالَ قَآئِلٞ مِّنۡهُمۡ كَمۡ لَبِثۡتُمۡ﴾ څخه د يوه تن قول راڅرګند (ښکاره) شو، او له ﴿قَالُواْ لَبِثۡنَا يَوۡمًا﴾ الآية ـ څخه پرته له هغه قائل څخه د دريو تنو نورو قائلينو پته ولګېده، له ﴿قَالُواْ رَبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَا لَبِثۡتُمۡ﴾ الآية ـ څخه برسېره په دوی د دريو تنو قائلينو ثبوت هم په لاس راځي، او په دې ډول اقلا لږ تر لږه ښايي دوی اوه تنه وي، چې سپی ترې مستثنی پاتې دی.

﴿وَلَا تَقُولَنَّ لِشَاْيۡءٍ إِنِّي فَاعِلٞ ذَٰلِكَ غَدًا ﴿٢٣﴾ إِلَّآ أَن يَشَآءَ ٱللَّهُۚ وَٱذۡكُر رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ وَقُلۡ عَسَىٰٓ أَن يَهۡدِيَنِ رَبِّي لِأَقۡرَبَ مِنۡ هَٰذَا رَشَدٗا ﴿٢٤﴾﴾

او مه وايه له سره په هيڅ باب کې چې بېشکه زه کوونکی يم د دغه کار سبا مګر (متّصل ورسره ووايه ای محمده!) که اراده فرمايلي وي الله، او يادوه رب خپل کله چې دې هېر شي، او ووايه (ای محمده! دوی ته) ښايي چې سمه صافه لار وښيي ماته رب ځما ډېرې نژدې ته له دې نه له جهته د لارښوونې (او نېکه لاره).

تفسير: د «أصحاب الكهف» قصه په تاريخي کتابونو کې له نادراتو څخه ليکلې شوې وه، او هر سړی ترې نشو خبرېدی. مشرکينو د يهودانو په لمسون له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دغه سوال وکړ، چې له دغه پوښتنې څخه د دوی مقصود امتحان وو، ځمونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم وعده وفرمايله چې سبا به يې دروښيم، ځکه متيقن وو چې جبرئيل عليه السلام به راځي او زه به ترې معلومات اخلم، او دوی ته به يې ووايم، خو جبرئيل عليه السلام تر پنځلسو

ورځو پورې رانغی، رسول الله صلی الله علیه وسلم ډېر خفه او غمجن شو، مشرکین په خندا او مسخرو لګیا شول، بالآخر د الله تعالی له جانبه دغه قصه ورته ولېږله شوه، او په پای (آخر) کې یې نصیحت هم ورعلاوه شو، چې وروسته له دې نه د هیڅ یوې خبرې په نسبت بې د﴿إِنْ شَآءَ اللَّهُ﴾ څخه نه ښایي چې وعده وفرمایي، که کوم وخت له تانه هېره شي؛ نو هر کله چې دې په یاد راشي ﴿إِنْ شَآءَ اللَّهُ﴾ ووایه !، او امیدوار شه چې الله تعالی به ستا درجه له دې نه لا زیاته کړي، یعنې هیڅ شی هیڅکله به له تاسې هېر نشي.

وَلَبِثُوا فِي كَهْفِهِمْ ثَلَٰثَ مِائَةٍ سِنِينَ وَازْدَادُوا تِسْعًا ﴿٢٥﴾

او مدّت تېر کړی وو دغو (ځلمیو) په غار کې درې سوه کاله (شمسي) او زیات کړي وو پرې دوی نهه (قمري کلونه نور هم).

تفسیر: یعنې د شمسي په حساب پوره درې سوه کاله په هغه غار کې ویده وو، او په قمري سره (۹) کاله نور زیات شو.

قُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا لَبِثُوا ۖ لَهُ غَيْبُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ أَبْصِرْ بِهِ وَأَسْمِعْ ۚ

ووایه (ای محمده ! دوی ته) الله ښه عالم دی په مقدار د هغه مدّت (چې دوی ځنډ (تأخیر) کړی وو په هغه کې)، خاص همده لره دي پټ (اسرار) د اسمانونو او د ځمکې، څه ښه لیدونکی دی الله، او څه ښه اورېدونکی دی الله.

تفسیر: یعنې مؤرخین د دوی د ویدېدلو او د بیا ویښېدلو مدّت راز راز بیانوي، خو له ټولو څخه صحیح او صواب همغه ده چې الله تعالی یې ښیي، ځکه چې د اسمان او د ځمکې د ټولو پټو اسرارو علم هم له ده سره شته، او هیڅ یو شی د ده له سترګې څخه نشي تېروتی.

مَا لَهُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِيٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾

او نشته چېرې دوی ته بې له ده نه هیڅ دوست، او نه شریکوي په حکم (قضاء) خپل کې بل هیڅوک.

تفسیر: یعنې همغسې چې د ده علم محیط دی؛ د ده قدرت او اختیار هم پر ټولو حاوي دی، همغسې چې د ﴿لَهُ غَيْبُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ﴾ په علم کې هیڅوک له ده سره مل او شریک نه دي، د قدرت په اختیاراتو کې هم هیڅوک له ده سره مل او شریک نشي کېدی.

وَاتْلُ مَآ أُوحِيَ إِلَيْكَ مِن كِتَابِ رَبِّكَ ۖ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَن تَجِدَ مِن دُونِهِۦ مُلْتَحَدًا ﴿٢٧﴾

او ولوله (ای محمده ! دوی ته) هغه څه چې وحي کړی شوې ده تا ته له کتابه د رب ستا، نشته بدلوونکی د کلماتو د دغه (الله)، او له سره به نه مومې ته غیر له دغه (الله) څخه هیڅ ځای د پناه (که قصد یې وکړې).

وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَوٰةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُۥ

او صبر کړه نفس خپل له هغو کسانو سره چې بولي (عبادت کوي) د رب خپل په سبا (اول د ورځې) او بېګا (آخر د ورځې یعنې هر کله)، غواړي دوی مخ د الله تعالی.

تفسیر: یعني د ده د لقاء، لیدلو او د هغه د رضاء د حصول په شوق کې په نهایت اخلاص سره تل په عباداتو کې مشغول اوسیږي، مثلاً ذکر کوي، قرآن لولي، پر خپلو لمونځونو مداومت کوي، د حلالو او حرامو تمیز کوي، د خالق او د مخلوق د دواړو حقوق پیژني، اګر که د دنیوي حیثیته دوی معزّز او مالدار نه دي، لکه په لویو اصحابو کې په دغه وخت کې عمّار، صُهیب، بلال، ابن مسعود، خَبّاب، سلمان او نور رضوان الله تعالی علیهم أجمعین، نو داسې مخلصین مؤمنین له خپل صحبت او مجالست څخه تل مستفید وګرځوه، او د هیڅا په ویلو او اورولو سره دوی د خپل مجلسه څخه مه بېلوه !.

وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَوٰةِ الدُّنْيَا

او نه دې تیریږي (وړاندې دواړه) سترګې ستا له دوی نه، چې غواړې ته زینت (ښایست) د دې ژوندون لړ خسیس.

تفسیر: یعني د دغو غریبانو او مات زړو او بې وځلو (کمزورو) مخلصینو مؤمنینو څخه له سره خپلې سترګې مه اړوه ! او لویو لویو غټو متکبرانو دنیادارانو ته په دغه مقصد مه ګوره ! چې د دوی د مسلمان کېدلو څخه به اسلامي دین ډېر ښه رونق او ښایست مومي، ځکه چې اسلامي اصلي عزّت او رونق په مادي خوشحالۍ او د سپینو او سرو زرو په مسکوکاتو نه دی مضبوط، بلکه په ایمان او تقوی او اعلی درجه ښو اخلاقو سره قائم دی.

وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُۥ عَن ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَىٰهُ وَكَانَ أَمْرُهُۥ فُرُطًا ﴿٢٨﴾

او اطاعت مه کوه (مه اوره خبره) د هغه چا چې غافل کړی دی مونږ زړه د ده له ذکره ځمونږ او متابعت یې کړی دی د هوا خپلې، او دی کار د هغه تجاوز (له حقه او غورځول د حق شاته، او تجاوز له حدود الله).

تفسیر: یعني د هغو کسانو په خبرو تاسې له سره غوږ مه ږدئ او مه یې اورئ چې د هغوی زړونه له حقه ذاهل او په دنیوي نشو کې مست او لا یعقل او د الله تعالی له یاده بیخي غافل دي، او تل د خپل نفس د خوښې او غوښتنې پسې مائل او رهي (روان) او لګیا دي، د الله تعالی په عبادت کې تکبّر، لویي، ځانمني (خودنمایي)، هوا پرستي، تقدم او تعالِي د دوی (رواج) او دستور دی، اګر که دوی ظاهراً ډېر بډایان (دولتمن)، د جاه او ثروت خاوندان هم وي.

په روایاتو کې راغلي دي چې د قریشو ځینو صنادیدو او غټانو ځمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک ته وویل: «تاسې د خپلو شاوو خوا څخه دغه فقراء، مسکینان، خواران، غریبان چې ګرد سره اوپرهګان (خوار) دي، لرې کړئ ! څو مونږ غټان، مشران، لویان او سرداران تاسې سره کینو»، ګواکې مسلمانانو ته اوپره او کفّارو ته یې بډای او سردار وویل، ممکن دی چې د محمد صلی الله علیه وسلم په مبارک زړه کې دغه خبره تېره شوي وي، چې د دغو غریبانو په بېلولو کې د لږ څه مدّت لپاره څه حرج او مضائقه ده؟ دوی خو پاخه مسلمانان دي، مصلحت ته به ګوري، نه به خفه کیږي، او دغه غټان به په دغه وسیله سره اسلام قبلوي، نو په دغه مناسبت دا آیت نازل شو، چې تاسې له سره د دغه متکبّرانو دغه خبرې مه اورئ !، ځکه چې د دوی دغه غوښتنې بیخي چټې او بېکاره دي، په دوی کې د حقیقي ایمان د قبلولو رنګ او استعداد نشته، نو بیا محض د موهومې فائدې لپاره د مخلصینو مسلمانانو د خاطر احترام ولې پر ښنودی شي؟.

وَقُلِ الْحَقُّ مِن رَّبِّكُمْ فَمَن شَآءَ فَلْيُؤْمِن وَمَن شَآءَ فَلْيَكْفُرْ

ووایه (ای محمده ! دوی ته، اسلام او قرآن) حق دی له رب ستاسې، پس هر څوک چې اراده (د ایمان) وکړي؛ نو ایمان دې راوړي ! او هر څوک چې اراده (د کفر) وکړي؛ نو کافر دې شي.

تفسیر: یعنې د الله تعالی له جانبه رښتیا رښتیا خبرې اوروليې شوي دي، الله تعالی د چا د منلو او نه منلو هیڅ پروا نه لري، هر څه نفع یا نقصان چې پیښیږي؛ هغه به یوائې ستاسې وي، منونکي او نامنونکي له هر یوه سره د هغه خپل عمل د لارې مل دی.

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلظَّٰلِمِينَ نَارًا أَحَاطَ بِهِمْ سُرَادِقُهَا ۚ وَإِن يَسْتَغِيثُوا۟ يُغَاثُوا۟ بِمَآءٍ كَٱلْمُهْلِ يَشْوِى ٱلْوُجُوهَ ۚ بِئْسَ ٱلشَّرَابُ وَسَآءَتْ مُرْتَفَقًا ﴿٢٩﴾

بېشکه چې مونږ تیار کړی مو دی لپاره د ظالمانو اور، چې چاپېر شوي دي له دوی پردې د هغه، او که فریاد وکړي (دوی له تندې) نو فریاد به يې واخیستی شي (په ورکولو د داسې) اوبو (سره) لکه زوې (یا د تېلو خته) چې وریتوي به مخونه، بد څیز د څښلو دي (دغه زوې)، او بد دی (دغه اور ځای د آرام یا) له وجې د انتفاع.

تفسیر: یعنې د ګرمی له شدّته به تږي کیږي، نو «العطش ! العطش !» نارې به وهي، نو د تېلو تلچټ (خیری، پاتې) یا د زوو په شان اوبه دوی ته ورکولی کیږي، چې د سخت تودوالي او د تندې له سببه د دوی خوله او کولمې به سره ټول وریتې او ټاکې وهي.

إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ إِنَّا لَا نُضِيعُ أَجْرَ مَنْ أَحْسَنَ عَمَلًا ﴿٣٠﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه) بېشکه مونږ نه ضایع کوو اجر (ثواب) د هغه چا چې ډېر نېک وي له جهته د عمل.

أُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهِمُ ٱلْأَنْهَٰرُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِن ذَهَبٍ وَيَلْبَسُونَ ثِيَابًا خُضْرًا مِّن سُندُسٍ وَإِسْتَبْرَقٍ مُّتَّكِـِٔينَ فِيهَا عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ ۚ نِعْمَ ٱلثَّوَابُ وَحَسُنَتْ مُرْتَفَقًا ﴿٣١﴾

دغه (مؤمنان چې دي) شته دوی ته جنتونه د تل هستوګنې چې بهیږي له لاندې (د ونو او مانیو) د دوی (څلور قسمه) ویالې، په لاس کولی به شي دوی ته په دغه جنت کې وښي له سرو زرو، او اغوندي به دغه (جنتیان) جامې زرغونې له نریو وربښمو او له پېړ، پنډ (غټو) وربښمو، تکیه کوونکي به وي په دغه جنتونو کې پر تختونو باندې، څومره ښه بدل دی (دا جنتونه او نعمتونه)، او څومره ښه دي (دا جنتونه) ځای د آرام.

تفسیر: ښایي چې د جنتي جامو (کالیو) مخ د نریو وربښمو او استر يې د پرېړو (غټو) وربښمو څخه وي، کما يُفهم من قوله تعالی: ﴿بَطَآئِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ﴾ (۲۷ جزء د الرحمن سورت (۵۴) آیت (۳) رکوع)، یا دواړه به سره بېل بېل استعمالیږي، والله أعلم، په «موضح القرآن» کې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې: سره زر او ربښمین کالي نارینه وو ته په جنت کې ور رسیږي، هر څوک يې چې دلته اغوندي؛ هلته به يې نه اغوندي.

جنتیانو به پر دغو نعمتونو سربېره پر ښو چپرکټو او پالنګونو تکیه لګولې په نهایت عزّت او احترام سره به ناست وي.

وَاضۡرِبۡ لَهُمۡ مَّثَلًا رَّجُلَيۡنِ جَعَلۡنَا لِأَحَدِهِمَا جَنَّتَيۡنِ مِنۡ أَعۡنَٰبٖ وَحَفَفۡنَٰهُمَا بِنَخۡلٖ وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُمَا زَرۡعٗا ﴿٣٢﴾

او وښيه بيان کړه ته دوی ته يو مثال (د کفّارو او مؤمنانو هغه) دوه سړي، چې ګرځولي (ورکړي وو) مونږ يو له دې دواړو ته دوه باغونه له انګورو، او پټ کړي وو مونږ دا باغونه په خرماوو سره، او پيدا کړی وو مونږ په منځ د دې (دواړو باغونو) کې کښت (فصل).

تفسير: دغه يې د غني کافر او فقير مؤمن مثال بيان وفرمايه، چې د هغه په ضمن کې د دنيا بې ثباتي، د کفر او تکبّر بد انجامي، او د ايمان او تقوی پر مقبوليت باندې تنبيه ده، دغه دواړه سړي چې د هغوی مثال بيان شوی دی، په واقعي ډول سره موجود وو؟ يا محض د تفهيم لپاره دغه مثال فرض کړی شوی دی، د علماوو په دغه مورد کې دوه قوله دي، او د تمثيلو فائده په هر حال کې حاصله ده.

د دغو ياد شوو باغونو په چارچاپېر د کجورو (خرماوو) ونې کښېنولي شوې دي، او د دواړو باغونو په منځ کې ځمکه د زراعت لپاره تخصيص ورکړی شوې ده، خو غله او مېوه ګرد تيار له همغه باغ څخه حاصل اخلي.

كِلۡتَا ٱلۡجَنَّتَيۡنِ ءَاتَتۡ أُكُلَهَا وَلَمۡ تَظۡلِم مِّنۡهُ شَيۡـٔٗاۚ وَفَجَّرۡنَا خِلَٰلَهُمَا نَهَرٗا ﴿٣٣﴾

دې دواړو باغونو ورکول به يې مېوې خپلې (پوره) او نه به يې کولو ظلم (کموالی) له محصوله خپله هيڅ قدر، او بهولې وه مونږ په منځ د دې دواړو باغونو کې وياله.

تفسير: يعنې داسې نه وو چې يو باغ به ښه وده او ښه حاصل ورکولو ، او بل نه ورکولو او بې حاصل او بې ودې پاتې وو، يا په يوه کې ډېرې ونې وې، او په بل کې کمې.

وَكَانَ لَهُۥ ثَمَرٞ فَقَالَ لِصَٰحِبِهِۦ وَهُوَ يُحَاوِرُهُۥٓ أَنَا۠ أَكۡثَرُ مِنكَ مَالٗا وَأَعَزُّ نَفَرٗا ﴿٣٤﴾

او وو ده ته (نورې) مېوې، پس وويل دغه (کافر) هغه (مؤمن) ملګري خپل ته حال دا چې هغه ورسره خبرې کولې (په افتخار سره) چې زه زيات يم له تا نه له جهته د مال، او ډېر عزتناک يم له جهته د سړيو.

تفسير: يعنې مال، دولت، ملاتړ، سړي ما سره له تا نه زيات دي، که زه د شرک او کُفر په اختيارولو کې په باطل وی؛ نو دومره مال، دولت، او هوسايي (آرام) به ولې ځما په برخه کېده؟ د ده د شرک ثبوت له دې نه په لاس راځي، چې د آفت د رسېدلو څخه يې وروسته په تأسّف او ارمان سره وويل: ﴿يَٰلَيۡتَنِي لَمۡ أُشۡرِكۡ بِرَبِّيٓ أَحَدٗا﴾، معلومېږي چې د هغه غريب ملګری چې پوخ موحد وو، د شرک د بطلان اظهار، او له شرک څخه د توبې کولو نصيحت به يې ورته کولو، چې د هغه په ځواب کې يې داسې ورته وويل چې: زه له تا نه په مال، اولاد، سړي، ملاتړ او هر ځيز کې زيات يم، نو څرنګه به يقين کوم چې زه پر باطل او تا غوندې مفلس او ناداره به په حق وي؟.

وَدَخَلَ جَنَّتَهُۥ وَهُوَ ظَالِمٞ لِّنَفۡسِهِۦ قَالَ مَآ أَظُنُّ أَن تَبِيدَ هَٰذِهِۦٓ أَبَدٗا ﴿٣٥﴾ وَمَآ أَظُنُّ ٱلسَّاعَةَ قَآئِمَةٗ وَلَئِن رُّدِدتُّ إِلَىٰ رَبِّي لَأَجِدَنَّ خَيۡرٗا مِّنۡهَا مُنقَلَبٗا ﴿٣٦﴾

او ننوت دی باغ خپل ته حال دا چې دی ظالم وو پر ځان خپل (په سبب د فخر، تکبر او کفر)، ويې ويل چې: زه نه کوم ګمان چې هلاک (خراب) به شي دغه باغ (ځما) هيڅکله، او نه کوم زه

ګمان په قيامت چې قائم (واقع) به شي، او قسم دی خامخا که بوتلی شم رب خپل ته (پس له بيا ژوندون)؛ نو قسم دی چې هرومرو به مومم خامخا غوره له دې باغ څخه مرجع.

تفسير: يعنې دی په شرک کې مبتلا وو، د کبر او غرور په نشو د ده دماغ ډک وو، نورو ته به يې په سپکه سره کتل، او حقير به يې ګڼل، او د الله تعالی پر قدرت او جبروت به يې نظر نه وو، او نه په دې پوهېده چې وروسته به يې انجام څه کيږي؟ همدغه باغ د ده جنت وو چې هغه به يې خپل ابدي خير ګڼلو، ده فکر کولو چې اوس خو مې ژوندون په آرام سره تيريږي، او ګرد انتظامات مې داسې مکمّل کړي دي چې څما تر ژوندانه پورې د دغو باغونو د تباه کېدو او خرابېدلو کومه ظاهري انديښنه نشته، پاتې شوه د بعث بعد الموت قصه؛ نو اول زه يقين نه لرم چې د مړ کېدلو څخه وروسته د هډوکي بڅرکي ته بيا دوهم ځلي نوی ژوند په برخه کيږي؟ او مونږ به د پاک الله په مخ کې وړاندې کيږو، ليکن که همداسې وشو؛ نو يقيناً ماته به له دې نه ښه او بهتر سامان هلته راورسيږي، که څمونږ دغه حرکات د الله تعالی خوښ نه وی؛ نو په دغه دنيا کې به يې ولې دومره وسعت او راحت را په برخه کولی؟ ګواکې د دې دنيا راحت او هوسايي (آرام) د هغه جهان په خوښی او هوسايی باندې دليل دی، چې زه به هلته هم مزې او چړچې کوم.

قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ أَكَفَرْتَ بِالَّذِي خَلَقَكَ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ سَوَّاكَ رَجُلًا ﴿٣٧﴾ لَٰكِنَّا هُوَ اللَّهُ رَبِّي وَلَا أُشْرِكُ بِرَبِّي أَحَدًا ﴿٣٨﴾

وويل (دغه کافر) ته (مؤمن) ملګري د ده حال دا چې دغه مؤمن خبرې اترې کولې له دغه کافر سره: آيا کافر شوې پر هغه (ذات) چې پيدا کړی يې ته (په اول کې) له خاورې، بيا يې له نطفې، بيا يې برابر کړې ته سړی (روغ په اندامونو). ليکن زه وايم شان دا دی چې الله رب څما دی، او نه شريکوم زه له ربه خپله سره هيڅوک.

تفسير: يعنې هغه الله تعالی چې ستا اصل آدم عليه السلام يې له بې جانه خاورې څخه، بيا ته يې د څمکې د حاصلاتو له خُلاصې او له يوه څاڅکي ناڅيزه اوبو څخه پيدا کړی يې، او ژوندون يې دربخښلی دی، او روحاني او جسماني قوّتونه يې درکړي دي، او لوی غټ انسان يې درڅخه پيدا کړی دی، نو آيا ته له دې نه انکار لرې، چې هغه به دې وروسته له مرګه بيا ژوندی کوي؟ يا دغه درکړی نعمت به له تا نه بېرته نشي اخيستی؟ څما عقيده خو داسې نه ده، بلکه زه پوره يقين لرم چې هم هغه لوی ذات يواځې څمونږ رب دی، د ده په الوهيت کې بل هيڅوک شرکت نه لري، او د ده د حکم او ارادې په مقابل کې هيڅوک هيڅ نشي ويلی او کولی، او نه خپله سا اخستی شي.

وَلَوْلَا إِذْ دَخَلْتَ جَنَّتَكَ قُلْتَ مَا شَاءَ اللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ

او ولې نه په هغه وخت کې چې ننوتې باغ خپل ته، ولې دې داسې نه ويل: هغه چې اراده وفرمايي الله (هغه کيږي)، نشته قوّت (هيچا لره په هيڅ کار مګر په توفيق) د الله.

تفسير: يعنې مال د الله تعالی نعمت دی، خو د غرور، تکبّر، او ځانمنی (خودنمايی) او د کُفر ويلو څخه آفت نازليږي، لازم او ښه خو داسې وو چې د باغ د داخلېدو په وخت دې د ﴿مَا أَظُنُّ أَنْ تَبِيدَ هَٰذِهِ أَبَدًا﴾ په ځای ﴿مَا شَاءَ اللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾ ويلي وی، يعنې د هر هغه څيز چې الله تعالی اراده وفرمايي؛ عطا کوي يې، څه زور او قوّت چې په مونږ کې شته؛ هغه د ده له امداد او اعانته راحاصل دی، که الله تعالی اراده وفرمايي؛ نو په يوه شپه کې هغه ګرد سلب او بېرته يې اخلي، په رواياتو کې راغلي دي، هر مهالې (وخت) چې انسان پخپل کور کهول او نور ځای کې په خوښی، آرام سره ځان مومي؛ نو همدغه لفظ دې ووايي: ﴿مَا شَاءَ اللَّهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ﴾

إِن تَرَنِ أَنَا أَقَلَّ مِنكَ مَالًا وَوَلَدًا ﴿٣٩﴾ فَعَسَىٰ رَبِّي أَن يُؤْتِيَنِ خَيْرًا مِّن جَنَّتِكَ وَيُرْسِلَ عَلَيْهَا حُسْبَانًا مِّنَ السَّمَاءِ فَتُصْبِحَ صَعِيدًا زَلَقًا ﴿٤٠﴾ أَوْ يُصْبِحَ مَاؤُهَا غَوْرًا فَلَن تَسْتَطِيعَ لَهُ طَلَبًا ﴿٤١﴾

که ته وینې ما چې زه لږ یم له تا نه د جهته د ماله او بچو. پس (امید لرم چې ژر دی چې) رب ځما راکړي ما ته (په دنیا او په آخرت کې) بهتره له باغ ستا، او چې ولېږي پر دغه (باغ ستا) تندر له (طرفه د) اسمانه، پس سبا ته وګرځي (باغ ستا) ډاګ میدان ښوی (چې ښویېږي پرې سړی) بې زرغونه. یا سبا ته وګرځي اوبه د دې باغ وچې ډوبې پس له سره به نه توانېږې دې ډوبو اوبو لره په لټولو سره.

تفسیر: یعنې یوه توده بوربوړکی (ګرد باد) والوځي یا بل کوم سماوي آفت نازل شي چې ستا د دغه تکبّر او غرور د نتائجو په سزا کې ستا دغه باغ ډاګ ډبر او سپېره او ترې صاف میدان جوړ کړي، یا د دغې ویالې اوبه وچې شي، او بیا سره له ډېر زیار (محنت) ایستلو او کوښښ اوبه په کې ونه بهیږي.

وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ فَأَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلَىٰ مَا أَنفَقَ فِيهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا وَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّي أَحَدًا ﴿٤٢﴾

او چاپېر کړی شو په انواعو د مېوو د هغه (باغ یا سړي یعنې هلاک شو)، پس وګرځېد په وخت د سبا کې چې اړه وه یې څټ او مخ د ارغویو خپل (یا مړل یې لاسونه او ورغوي خپل)، (له خپګانه) پر هغه مبلغ چې لګولی وو پر دغه باغ، حال دا چې دغه باغ لوېدلی وو پر ځیلو (مناګانو د تاکو کورو) خپلو، او وایې: ای کاشکې ما نه وی نیولی شریک رب خپل سره هیڅوک (څو مې دغه باغ نه وی وران شوی).

تفسیر: شاه صاحب لیکي: «آخر د ده پر باغ باندې هم هغسې وشوه چې د دغه ښه سړي له خولې څخه وتلي وو، په شپه کې سماوي آفت د اور په صورت راغی، او ګرد باغ یې وسوځوه، او د ایري ډېرۍ یې ترې جوړه کړه، مال یې لګولی وو د پنګې (رأس المال) د تزیید لپاره، خو پنګه او ګټه اصل او فرع دواړه یې له لاسه ووتل»، د باغ خاوند په ژړا او انګولا سر شو، مګر:

څه په کار ده اوس ژړا او انګولا «««»»» لوښې مات او غوړي توی شو په بیدیا.

او دغه افسوس او ندامت هم د الله تعالی له وېرې نه وو، بلکه تش د دنیوي ضرر رسېدلو په بناء وو.

وَلَمْ تَكُن لَّهُ فِئَةٌ يَنصُرُونَهُ مِن دُونِ اللَّهِ وَمَا كَانَ مُنتَصِرًا ﴿٤٣﴾

او نه وه ده ته کومه ډله چې مدد یې کړی وی له ده سره (په دفع د آفت کې) غیر له الله، او نه وو دی پخپله مددګار د خپل ځان (په دفع د هلاک کې).

هُنَالِكَ الْوَلَايَةُ لِلَّهِ الْحَقِّ ۚ هُوَ خَيْرٌ ثَوَابًا وَخَيْرٌ عُقْبًا ﴿٤٤﴾

په دې وخت کې ګرد ولایت اختیار خاص الله لره حق دی، الله خیر (غوره) دی له جهته د ثواب او خیر (غوره) دی له جهته د عاقبته.

تفسیر: یعنې د هر عمل هر بدل چې دی ورکړي؛ هغه درست دی، دلته او هلته په هر ځآی کې د همده واک او اختیار چلیږي، او هیڅوک هیڅ طاقت او توان نه لري، چې د ده په حکم او فیصله کې څه مداخله وکړي، یا څه ګوتې په کې ووهي.

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ فَاَصْبَحَ هَشِيْمًا تَذْرُوْهُ الرِّيٰحُ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقْتَدِرًا ﴿۴۵﴾

او بیان کړه دغو (خلقو) ته مثال د دې ژوندون لږ خسیس (په تازګی او سرعت د زوال کې) په مثل د هغو اوبو چې نازلې کړې دي مونږ هغه اوبه له (طرف د) اسمانه، نو یو بل سره ګډوډ شي په سبب د دې (اوبو) سره زرغونه د ځمکې، نو سبا ته وګرځي (دغه زرغونه) وچه کلکه ماته ماته چې الوځوي یې بادونه، او دی الله پر هر څیز باندې توانا قادر (چې څیني د هغو انشاء او افناء دي).

تفسیر: یعنې د دنیا د دغه عارضي پسرلي او د فاني او سریع الزوال ښایست او سینګار مثال داسې وګڼئ چې پر وچه او مړه ځمکه د باران اوبه ولوېږي، او هغه یو په یو تکه شنه او ژوندی شي، او پر ګڼو شینکیو او ونو ښایسته شي، او مختلفې ترکودې (نباتات) ځنې خارج او مخلوط او ګډه وډه زرغونتیا په کې پیدا شي، مګر څو ورځې وروسته هغه تک زیړ واوړي، او په وچېدلو او رژېدلو باندې شروع وکړي، بالآخر په یوه وخت ګرد سره لو او قطع او پرې او وریبل شي، او بیا ټوټه ټوټه او بوس بوس کړی شي، او په هوا کې والوځولی شي، د دنیا د سترګو غولوونکی او ناپوهان تېرایستونکی ښایست او سینګار همداسې وګڼئ، چې د څو ورځو له مخې ډېر ښکلې او زړه وړونکی په نظر راځي، بالآخر ذرې ذرې او په هوا کې والوځي، او ګرد سره لرې او پرې شي، او ډاګ ډېر صاف میدان ترې پاتې شي، لکه چې وروسته په ﴿وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً﴾ کې اشاره کړی شوې ده.

اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ خَيْرٌ عِنْدَ رَبِّكَ ثَوَابًا وَّخَيْرٌ اَمَلًا ﴿۴۶﴾

مال (د دنیا) او ځامن (چې په کې اخروي مفاد نه وي) زینت (رونق) ښایست د دې ژوندون لږ خسیس دی، او باقي پاتې کېدونکي نېک (عملونه) خیر غوره دي په نزد د رب ستا له جهته د ثوابه او (خیر) غوره دي له جهته د امید.

تفسیر: یعنې وروسته له مرګه مال او اولاد او نور هیڅ په کار نه راځي، او یواځې هغه نېک کارونه په کار راځي چې د هغو اثر یا ثواب مستقبل ته پاتې کېدونکی وي، په حدیث کې دغه کلمات طیبات: )سبحان الله والحمد لله ولا إله إلا الله والله أکبر، ولا حول ولا قوة إلا بالله( له الباقیات الصالحات څخه فرمایلي شوي دي، دغه محض د مثال په ډول دی، که نه ګرد (ټول) حسنه اعمال په دې کې داخل دي، په «موضح القرآن» کې دي: ﴿وَالْبٰقِيٰتُ الصّٰلِحٰتُ﴾ دا دي چې د داسې یوه علم ښوونه وکړي چې جاري وي، یا کومه نېکه طریقه وچلوي، یا مسجد، یا کوهی، یا سرای، یا باغ، یا کومه مزرعه وقف کړي، یا خپل اولاد ته ښه تعلیم او تربیه ورکړي، او وروسته له خپله دغه صالح ولد پرېږدي، نو دغه ګرد داسې ښه اعمال دي، چې پر هغو باندې د الله تعالی له جانبه ښه بدل موندل کېدی شي، او انسان پرې عمده توقّعات قائمولی شي، د دنیا پر فاني او زائلې خوشالۍ طویل او عریض امیدونه تړل د عقل او هوش کار نه دی.

وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْاَرْضَ بَارِزَةً ۙ وَّحَشَرْنٰهُمْ فَلَمْ نُغَادِرْ مِنْهُمْ اَحَدًا ﴿۴۷﴾

او (یاد کړه) هغه ورځ چې روان به کړو غرونه او ګورې به ته (ای انسانه !) ځمکه ښکاره (صاف میدان)، او راجمع به کړو دوی (یعنې خلق) نو پرې به نه ږدو له دوی نه یو تن هم (نه له اولینو او نه له آخرینو).

تفسير: يعني كله چې قيامت راشي؛ نو د غرونو په شان سخت مخلوق هم له خپله ځايه الوځي، بلكه دغه لوى او درانه غرونه هم لكه ټكولى شويو وړيو غوندې په هوا كې سره ګرځي او الوځي، الغرض دغه ګردې لوړې او ژورې به سمې برابرې او ځمكه به له يوه سره تر بله سره پورې صاف هوار ميدان شي.

وَعُرِضُوا عَلٰى رَبِّكَ صَفًّا ؕ لَقَدْ جِئْتُمُوْنَا كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍۢ ؗ بَلْ زَعَمْتُمْ اَلَّنْ نَّجْعَلَ لَكُمْ مَّوْعِدًا ﴿۴۸﴾

او وړاندې به كړى شي دوى په رب ستا صف صف (او وبه ويلى شي دغو صفوفو ته): خامخا په تحقيق راغلئ تاسې مونږ ته لكه چې پيدا كړي وئ مونږ تاسې ړومبى ځلې (له خپلې موره)، بلكه ګمان كولو تاسې (اى منكرينو د بعث) چې وبه نه ګرځوو مونږ تاسې ته ځاى او وخت د وعدې.

تفسير: د بعث منكرينو ته به د تقريع او توبيخ په ډول وويلى شي، چې تاسې خو قيامت او نورې ايماني خبرې چټې (بېكاره) او دروغ ګڼلې، نو نن تاسې هغه ګرد دنيوي ساز سامان او اثاثه چېرې پرېښې؟ او دغسې لوڅ لغړ چېرې درومئ؟

وَوُضِعَ الْكِتٰبُ فَتَرَى الْمُجْرِمِيْنَ مُشْفِقِيْنَ مِمَّا فِيْهِ وَيَقُوْلُوْنَ يٰوَيْلَتَنَا مَالِ هٰذَا الْكِتٰبِ لَا يُغَادِرُ صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً اِلَّآ اَحْصٰىهَا ۚ وَوَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا ؕ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ اَحَدًا ﴿۴۹﴾

او كېښودلى به شي كتاب (أعمالنامې په لاسونو د خلقو كې) پس ګورې به ته ګناهګاران ويرېدونكي له هغه نه چې په كې (ليكلي) دي (له ګناهونو)، او وايي به اى هلاكه ځمونږ (راشه دغه دې وخت دى) څه حال دى د دې اعمالنامې (ځمونږ)چې نه پرېږدي (ګناه) وړه او نه لويه، مګر چې حساب كړې يې دي هغه (ټولې)، او وبه مومې دوى هغه څيز چې كړى وي (په دنيا كې په خپل مخ كې) حاضر، او نه كوي ظلم رب ستا پر هيچا (چې كومه ګناه يې نه وي كړې او ويې ليكي).

تفسير: يعني د هر يوه اعمالنامې وركولى كيږي، دوى به په هغه كې د خپلو اعمالو فهرست (نوم ليك) ولولي، او مجرمين به له خپلو ګناهونو سخت ويرېږي، او وايي به الله پوهيږي چې نن څرنګه سختې سزاوې رارسيږي؟ په دغه اعمالنامه كې به يې د ذرې ذرې عمل تر سترګو لاندې وي، او هره يوه وړه او لويه نيكي او بدي به په دغه اعمالنامه كې مندرجه او ليكلې مومي.

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ كَانَ مِنَ الْجِنِّ فَفَسَقَ عَنْ اَمْرِ رَبِّهٖ ؕ اَفَتَتَّخِذُوْنَهٗ وَذُرِّيَّتَهٗٓ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِيْ وَهُمْ لَكُمْ عَدُوٌّ ؕ بِئْسَ لِلظّٰلِمِيْنَ بَدَلًا ﴿۵۰﴾

او (ياد كړه) هغه وخت چې وويل مونږ پرښتو ته چې سجده وكړئ تاسې (تعظيمًا) آدم ته پس سجده وكړه (ټولو) مګر (ونه كړه سجده) ابليس، وو دى (اصلا) له پيريانو پس ووت له امره د رب خپل (په ترک د سجدې)، آيا پس نيسئ تاسې ابليس او اولاده د دغه دوستان (چې خبره يې منئ) غير له ما، حال دا چې دي دغه (شياطين) تاسې ته دښمنان، بد دى (ابليس) ظالمانو ته بدل (له الله چې شيطان مني او رحمان نه مني).

تفسیر: راجح همدا ده چې ابلیس د پیریانو له نوعې وو، ده په عبادت کې ترقي وکړه، او د پرښتو په ډله کې شامل شو، نو ځکه کوم حکم چې پرښتو ته د سجود وشو؛ هغه ته هم وشو، په دغه وخت کې د ده اصلي طبیعت او سرکشي او غرور د طینت ښکاره شو، او له ډېره تکبّره د الله تعالی د حکم منلو څخه یې غاړه وغړوله، او د آدم په مخ کې سجده کول یې خپل د شان کسر وګاڼه، تعجب دی چې نن د آدم اولاد د خپل رب په ځای هغه ازلي دښمن او د ده اولاد او أتباع څرنګه خپل رفیق ملګري خیر غوښتونکي او دوست دروي؟ آیا له دې نه به بل کوم ظلم او بې انصافي څه وي؟ دغه قصه پخوا له دې نه هم په څو ځایونو کې بالتفصیل تېره شوې ده، دلته د هغې له تذکرې څخه دغه تنبیه مقصود دی، چې د فاني دنیا په ډول او سینګار مغروربدل او د آخرت څخه غافل کېدل فقط د شیطان په تحریک او تسویل سره کېږي، ځکه چې شیطان غواړي چې مونږ بیا خپل هغه اصلي او آبائي وطن (جنّت) ته بېرته لاړ نه شو.

تنبیه: ابن کثیر (رحمه الله) ځینې روایات نقل کړي دي، چې په هغو کې د ابلیس اصل د ملائکو له نوعې څخه ښوولی شوی دی، او لیکلي یې دي چې د دغو روایاتو غالبه حصه له اسرائیلیاتو څخه ده، چې ښایي وروسته له ډېره فکره او نظره په احتیاط سره ومنلی شي، او له هغو څخه اکثر شیان خو یقیناً دروغ دي، ځکه چې لوی قرآن بالتصریح د هغه تکذیب کوي، وروسته له هغه ابن کثیر (رحمه الله) په ډېرو متینو الفاظو سره د اسرائیلیاتو په نسبت څه کلام کړی دی، چې د لوستلو او په یاد لرلو قابل دی، چې دلته یې مونږ د تطویل له خوفه نشو داخلولی.

مَآ اَشْهَدْتُّهُمْ خَلْقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَا خَلْقَ اَنْفُسِهِمْ ۪ وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّيْنَ عَضُدًا ﴿۵۱﴾

نه دي حاضر کړي ما دغه (شیاطین) پیدا کولو د اسمانونو او د ځمکې ته، او نه پیدایښت د ځانونو د دوی ته، او نه یم زه نیونکی د ګمراه کوونکو مټ بازو (مددګار، یعنې له شیاطینو مرسته نه غواړم په هیڅ شي کې، نو ولې تاسې یې امر حکم منئ؟).

تفسیر: یعنې د ځمکې او اسمان د پیدا کولو په وخت کې مونږ دغه شیاطین نه وو رابللي چې راځئ ځما کار وګورئ چې ښه دی، که څه نقص په کې شته؟، الغرض له دوی څنې د تکوین او ایجاد په عالم کې هیڅ مشوره نه ده اخیستې شوې، او نه مدد ترې طلب کړی شوی دی، بلکه د ځمکې او اسمان د پیدایښت په وخت کې خو له سره پخپله دوی هم موجود نه وو، او پخپله د دوی د پیدایښت په وخت کې هم ترې پوښتنه نه ده شوې چې ته څرنګه پیدا کړی شې؟.

وَيَوْمَ يَقُوْلُ نَادُوْا شُرَكَآءِيَ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيْبُوْا لَهُمْ وَجَعَلْنَا بَيْنَهُمْ مَّوْبِقًا ﴿۵۲﴾

او (یاد کړه) هغه ورځ چې وبه وایي (الله مشرکانو ته) چې نارې کړئ شریکانو ځما ته هغه چې ګمان کولو تاسې (د معبودانو پر هغو) پس وبه بولي دوی هغوی، نو ځواب به ورنه کړي دوی ته، او وبه ګرځوو مونږ په منځ د دوی کې ځای د هلاک (دوزخ).

تفسیر: یعنې هغه چې تاسې له ما سره شریکان درولي وو؛ هغوی ته نارې کړئ، څو د دې مصیبت په وخت کې له تاسې سره مدد او کومک وکړي، خو په دغه وخت کې د رفاقت او دوستۍ کړۍ شکیږي ویلي کېږي (او د دوستۍ ټول اسباب غوڅیږي)، او د خپلوۍ دغه چلو صاف به له اوبو څخه وځي، څرنګه چې دوی به یو بل ته له سره نژدې کېدی هم نشي، نو یو له بل سره به مدد او مرسته په څه ډول سره رسولی شي، د دغو عابدینو او معبودینو په منځ کې به د اور یو عظیم او وسیع خندق حائل وي.

وَرَاَ الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ فَظَنُّوْٓا اَنَّهُمْ مُّوَاقِعُوْهَا وَلَمْ يَجِدُوْا عَنْهَا مَصْرِفًا ﴿۵۳﴾

او وبه ګوري مجرمان (مشرکان) اور پس یقین به یې راشي په دې چې په تحقيق دوی لويدونکي دي په دغه (اور د دوزخ) کې، او نه به مومي دوی له دغه (اوره) ځای د په څنګ کېدلو.

تفسیر: یعني په اوله ابتداء کې به لږ څه د مغفرت او بخښنې امید لري، لیکن همدغه چې په جهنّم باندې د دوی سترګې ولګیږي، او جهنّم دوی خپل ځان ته ورکش کړي؛ نو پوره یقین به یې راشي، چې اوس هرومرو زه په دغه اور کې لوېږم، او د تېښتې هیڅ یوه لاره ماته نه ده پاتې، او نه خپله لار له دغه اور څخه بل لوري ته پیدا کولی شم.

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لِلنَّاسِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ ؕ وَكَانَ الْاِنْسَانُ اَكْثَرَ شَيْءٍ جَدَلًا ﴿۵۴﴾

او خامخا په تحقيق مکرر بیان کړي دي مونږ په دې قرآن کې خلقو ته د هر قسم مثل (له جهته د عبرت)، او دی انسان زيات له هر شي څخه له جهته د جدل (جګړې او خصومت په باطله کې).

تفسیر: یعني لوی قرآن په څه څه مختلفو عنواناتو او قسم قسم دلائلو او امثله وو سره ربښتیا ربښتیا خبرې پوهوي، مګر انسان داسې جګړه کوونکی دی، چې په صافه او سمه خبره کې هم کږې وږې خبرې پیدا کوي، او د بې موردو حجّتونو او دلائلو د راوړو څخه لاس نه اخلي، او تل جنګ او جګړه کوي، کله چې په خبرو او جګړو سره څه ونشي؛ نو پر مهمل او بېکاره چټي فرمایشونو باندې لاس پورې کوي، چې هغه شی او دغه شی راوښیه؛ نو زه به یې ومنم.

وَمَا مَنَعَ النَّاسَ اَنْ يُّؤْمِنُوْٓا اِذْ جَآءَهُمُ الْهُدٰى وَيَسْتَغْفِرُوْا رَبَّهُمْ اِلَّآ اَنْ تَاْتِيَهُمْ سُنَّةُ الْاَوَّلِيْنَ اَوْ يَاْتِيَهُمُ الْعَذَابُ قُبُلًا ﴿۵۵﴾

او نه دي منع کړي دا خلق له دې نه چې ایمان راوړي کله چې راغی دوی ته هدایت (رسول او قرآن) او (له دې نه چې) بخښنه وغواړي له رب خپل؛ مګر (دې خبرې) چې راشي دوی ته هغه طریقه د ړومبنیو (خلقو چې هلاک د دوی وو) یا راشي دوی ته عذاب مخامخ.

تفسیر: یعني د دغه ضد او عناد له ليدلو څخه ويلی شو چې د داسې عظیم الشأن قرآن د هدایت د رارسېدلو څخه بعد دوی خپل د ایمان نه راوړلو او توبه نه ایستلو لپاره هیڅ کوم معقول دلیل او عذر نه لري، نو اوس د حق په منلو کې ولې ځنډ کوي؟ اوس د څه شي په انتظار کې دي؟ پر ته له دې نه چې د پخوانیو اقوامو په شان الله تعالی دوی په کُلّي ډول سره سپېره او تباه کړي، او که یې تباه نه کړي نو اقلاً د الله تعالی د عذاب مختلف صورتونه د دوی د سترګو په مخ کې ودرول شي، هکذا یُفهم من تفسیر ابن کثیر (رحمه الله) وغیره.

وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ وَيُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ لِيُدْحِضُوْا بِهِ الْحَقَّ وَاتَّخَذُوْٓا اٰيٰتِيْ وَمَآ اُنْذِرُوْا هُزُوًا ﴿۵۶﴾

او نه لیږو مونږ رسولان مګر زیري ورکوونکي (مؤمنانو ته په نعیم سره) او ویروونکي (کُفّارو ته په جحيم سره)، او جګړې کوي هغه کسان چې کافران شوي دي په باطله سره لپاره د دې چې ورک او لرې کړي په دې سره حق ربښتیا خبره، او نیولي دي آیتونه (د قرآن) ځما او هغه شیان چې (پرې) ویرولي شوي وو دوی مسخره.

**تفسیر:** یعني په دروغو جګړه يې نښلولې، او کاږه بحثونه يې غوښتل چې د حق غږ ښکته کړي، او د دروغو په زور د رښتيا قدم وښويوي، خو داسې به له سره نه کيږي، او د الله تعالی له کلام سره مسخرې کوي، او ملنډې پرې وهي، کله چې دوی د الله تعالی له کلامه وېروی شي؛ نو پرې خاندي او مسخرې کوي.

وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ ذُكِّرَ بِاٰيٰتِ رَبِّهٖ فَاَعْرَضَ عَنْهَا وَنَسِيَ مَا قَدَّمَتْ يَدٰهُ ؕ

او څوک دی ډېر لوی ظالم له هغه چا چې پند ورکړی شوي دي ده ته په آیتونو د رب د ده، پس وګرځوي مخ له هغه (فکر په کې ونه کړي او پند ترې وانخلي) او هېر کړي هغه عملونه چې وړاندې لېږلي لاسونو د ده (چې کفر او معاصي دي).

**تفسیر:** یعني کله له هېرې هم داسې يو خيال ورپيدا نشو چې د تکذيب الحق او استهزاء او تمسخر هغه ذخيره چې دوی وړاندې لېږي؛ د هغه سزا به څه وي؟.

اِنَّا جَعَلْنَا عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ؕ وَاِنْ تَدْعُهُمْ اِلَى الْهُدٰى فَلَنْ يَّهْتَدُوْٓا اِذًا اَبَدًا ﴿٥٧﴾

بېشکه مونږ ګرځولي مو دي پر زړونو د دوی پردې لپاره د دې چې پوه نشي پر دغه -قرآن- او (ګرځولي مو دي) پر غوږونو د دوی کوڼوالي، او که ته راوبولې دوی په طرف د سمې لارې؛ پس له سره هدايت نه مومي دوی په دغه وخت کې هيڅېرې.

**تفسیر:** یعني د دوی د جدال بالباطل او استهزاء بالحق له سببه مونږ د دوی پر زړونو پرده غورځولې ده، او غوږونه مو ورته داسې تپلي او بند کړي دي؛ چې اوس له سره حق پرې نشي اورېدلی، او که د انجام او عاقبت په طرف فکر وکړي؛ نو څرنګه به کولي شي، د داسې بدبختانو څخه له سره دغه هيله او توقع نشي کېدی چې پر لاره راشي.

وَرَبُّكَ الْغَفُوْرُ ذُو الرَّحْمَةِ ؕ لَوْ يُؤَاخِذُهُمْ بِمَا كَسَبُوْا لَعَجَّلَ لَهُمُ الْعَذَابَ ؕ بَلْ لَّهُمْ مَّوْعِدٌ لَّنْ يَّجِدُوْا مِنْ دُوْنِهٖ مَوْىِٕلًا ﴿٥٨﴾

او رب ستا ډېر بخښونکی څېښتن (خاوند) د رحمت دی، که نيولي وی (الله دغه کفّار په دنيا کې) په سبب د هغو ګناهونو چې کوي يې دوی؛ نو خامخا ژر به يې رالېږلی وو دوی ته عذاب (په دنيا کې هم)، بلکه شته دوی ته ځای (يا وخت) د وعدې چې له سره به ونه مومي دوی غير له الله پناهي (ځای د تېښتې).

**تفسیر:** یعني د دوی اعمال خو داسې دي چې د عذاب په لېږلو کې ښايي يو ساعت هم تأخير او ډيل واقع نشي، مګر د الله تعالی حلم او کرم د دوی فوراً تباه کولو څخه مانع دی، او پخپل عمومي رحمت سره تر يو خاص حد پورې ترې تيرېږي، او ډېر سخت مجرم ته هم فرصت او موقع ورکوي، څو هر وخت چې وغواړي له خپلو بدو اعمالو څخه توبه وکاږي، نو د هغه تېر ګناهونه بخښلي کيږي، او د ايمان راوړلو په سبب د عظيمه وو نعمتونو مستحق ګرځي.

وَتِلْكَ الْقُرٰۤى اَهْلَكْنٰهُمْ لَمَّا ظَلَمُوْا وَجَعَلْنَا لِمَهْلِكِهِمْ مَّوْعِدًا ﴿٥٩﴾ ع

او دغه (اهل د) کليو (چې دي) هلاک کړل مونږ دوی هر کله چې ظلم يې اختيار کړ، او مقرره کړې وه مونږ لپاره د دوی يوه نېټه (معلومه).

تفسیر: یعنې د عاد او ثمود خرابو او ویجاړو کلیو ته وګورئ چې د هغوی واقعات مشهور او معروف دي، کله چې دوی ظلم او تېری وکړ؛ نو څرنګه پخپل معیّن وخت کې سره تباه او برباد کړل شو؟ همداسې تاسې ته هم وېره پکار ده، چې په موعوده وخت کې تاسې ته د الله تعالی له عذابه هیڅېږې د پناه ځای او نجات په لاس نه درځي.

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَاهُ لَآ أَبْرَحُ حَتَّىٰٓ أَبْلُغَ مَجْمَعَ ٱلْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِىَ حُقُبًا ﴿٦٠﴾

او (یاد کړه) هغه وخت چې وویل موسی ځلمي (خادم) خپل ته چې تل به ځمه تر هغه پورې چې ورسېږم ځای د یوځای کېدلو د دواړو سیندونو ته، یا به ګرځم ډېرې زمانې.

تفسیر: پاس ذکر شوي وو چې مغرورو کافرانو، مفلسان مخلصان مسلمانان حقیر ګڼل، او رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته به یې ویل چې: دوی مه پر ېږدئ چې له تاسې سره کښیني، څو مونږ له تاسې سره کښینو، د هغه په نسبت یې د دوو کسانو قصه اوروله، بیا یې د دنیا مثال او د ابلیس خرابېدل د کبر او غرور لامله بیان کړل، اوس د موسی علیه السلام او د خضر علیه السلام د قصې ذکر کوي، چې د الله تعالی خاص بندګان اګر که له نورو څنې افضل او بهتر هم وي؛ خو بیا هم دوی خپل ځان افضل او بهتر نه ګڼي، او کله چې په سهو او تېروتلو سره ځان غوره وګڼي؛ نو د الله تعالی له جانبه دوی ته تنبیه او تأدیب ورکول کېږي.

په حدیث شریف کې راغلي دي چې موسی علیه السلام خپل قوم ته یوه ورځ ډېر مؤثر او خوږا (ډېر) ښه پند او نصیحتونه فرمایل، یوه سړي له دوی څخه پوښتنه وکړه چې: «یا موسی علیه السلام ! آیا د ځمکې په مخ کې به له تاسې څخه بل کوم لوی عالم موندہ شي؟»، موسی علیه السلام وفرمایل: «نه»، دغه ځواب اګر که په واقع کې صحیح وو، ځکه چې موسی علیه السلام د أولوالعزمو انبیاوو څخه وو، او ښکاره ده چې په دغه زمانه کې د شرعیه وو علوموپه اسرارو کې د ده د علم څخه د بل هیڅا علم زیات نه وو، لیکن دغه ادّعا د پاک الله په دربار کې غیر مرغوبه (ناپسنده) واقع شوه، اګر که مراد یې صحیح وو، بیا هم د ځواب د عنوان له عمومه داسې ظاهرېده چې د ځمکې په مخ کې من کل الوجوه دی خپل ځان «أعلم الناس» ګڼي.

د الله تعالی مرضي دا وه چې دغه ځواب به یې د ده پر محیط علم محول کولو، مثلاً داسې به یې ویل چې: د الله تعالی مقرّب او مقبول بندګان ډېر دي، له ګردو څخه فقط همغه علیم او خبیر خبر دی او بس، نو دلته وحي پرې نازله شوه، چې په هغه ځای کې چې دوه سیندونه سره یو ځای ګډېږي؛ د هغه سره نژدې ځمونږ داسې یو بنده شته چې هغه سره داسې علم شته چې له تا سره نشته.

په هر حال موسی علیه السلام غوښتنه وکړه چې ماته د هغه پوره نښه او سراغ وښوولی شي؛ څو زه هلته لاړ شم، او څه علمي استفاده وکړم.

حکم صادر شو چې ته د ده په لټولو پسې ووځه ! او یو وریت کړی ماهي (کب) له ځانه سره واخله ! هر چېرې چې هغه وریت کړی کب در څخه ورك شو؛ نو وپوهېږه چې ځمونږ هغه بنده همغلته موجود دی، ګواکې له مجمع البحرین به چې یوه وسیع قطعه ترې مرادېده شي؛ همدغه ځای مراد دی، چې د هغه د تعیین لپاره همدغه علامه مقرّر فرمایلې شوې ده.

موسی علیه السلام سم له همدغه هدایته په سفر شروع وکړه، او خپل ملګري خادم ته یې وویل چې: «پر دغه (کب) پاملرنه وکړه ! زه به تل مزل وهم څو د مقصود منزل ته ورسېږم، فرض یې کړه که کلونه او قرن هم تېر شي؛ زه بې د دغه مقصد له حصوله له مسافرته لاس نه اخلم».

تنبیه: له ځلمي څخه مراد یوشع علیه السلام دی، چې په ابتداء کې د موسی علیه السلام خاص خادم وو، او بیا د ده په حضور کې (نبي) او وروسته د موسی علیه السلام خلیفه شو.

فَلَمَّا بَلَغَا مَجْمَعَ بَيْنِهِمَا نَسِيَا حُوتَهُمَا فَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ سَرَبًا ﴿٦١﴾

بیا کله چې ورسېدل ځای د یوځای کېدو په مابین د دواړو سیندونو کې هېر کړ دواړو ماهي خپل، نو ونیوله (دې ماهي) لاره خپله په بحر کې (په شان د) سرنګ (کوڅه).

تفسیر: هلته ورسېد او د لویې تیږې (ګټې) په څنګ چې ترې لاندې چینه بهېده؛ موسی علیه السلام ویده شو، یوشع علیه السلام ولیده چې هغه وریت کړی ماهي باذن الله ژوندی شو، او په یو عجیبه طریقه سره په سیند کې چې د سرنګ په شان به یې لاره ځان ته جوړوله روان شو، او هلته په اوبو کې د الله تعالی په قدرت د یوه تونل (سوپ یا طاق) په شان دالان ښکاره شو، یوشع د دې وضعیت د لیدلو څخه متحیّر او متعجّب شو، او غوښتل یې څه مهال (وخت) چې موسی علیه السلام ویښ شي؛ دغه قصه ورته ووایي، او دغه پېښه ورته وښیي.

موسی علیه السلام ویښ شو، نو سمدلاسه ودرېد، او په تګ یې پیل وکړ، الله تعالی خبر چې د موسی علیه السلام د ویښیدلو او رهي (روان) کېدلو په وخت کې یوشع علیه السلام په کوم خیالاتو کې ډوب تللی وو، چې د هغه ماهي د ژوندي کېدلو د پېښې قصه یې هېره شوه، په روایاتو کې راغلي دي کله چې موسی علیه السلام یوشع علیه السلام ته د هغه ماهي د ساتلو په نسبت تأکیدات کول؛ یوشع علیه السلام له خولې دا خبره ووته چې د یوه ماهي ساتنه دومره لویه خبره نه ده چې ته پرې دومره تأکیدونه کوې، لهذا ده ته هم تنبیه ورکړه شوه چې انسان ته پکار دي چې په ډېر وړوکي کار کې هم پر خپل ځان بې د الله تعالی له فضله تکیه او اعتماد ونه کړي !.

فَلَمَّا جَاوَزَا قَالَ لِفَتَاهُ آتِنَا غَدَاءَنَا لَقَدْ لَقِينَا مِنْ سَفَرِنَا هَٰذَا نَصَبًا ﴿٦٢﴾

نو کله چې تېر شول (له مجمع البحرین څخه) وویل (موسی) خپل ځلمي ته راوړه مونږ ته سباناری (خوراک) څمونږ، په تحقیق پېښه شوه مونږ ته له دغه سفره څمونږه ډېره سختي.

تفسیر: موسی علیه السلام پخوا له دې په دغه سفر کې نه وو ستړی شوی، څه مهال (وخت) چې د مطلب ماهی د ده له لاسه خوشې شو؛ نو هلته ورته پخپل تګ کې ستوماني ورمحسوسه شوه.

قَالَ أَرَأَيْتَ إِذْ أَوَيْنَا إِلَى الصَّخْرَةِ فَإِنِّي نَسِيتُ الْحُوتَ وَمَا أَنْسَانِيهُ إِلَّا الشَّيْطَانُ أَنْ أَذْكُرَهُ
وَاتَّخَذَ سَبِيلَهُ فِي الْبَحْرِ عَجَبًا ﴿٦٣﴾ قَالَ ذَٰلِكَ مَا كُنَّا نَبْغِ فَارْتَدَّا عَلَىٰ آثَارِهِمَا قَصَصًا ﴿٦٤﴾

وویل (ځلمي) آیا ولید (خبر شوې) کله چې ځای ونیوه مونږ هغې لویې تیږې ته (چې د چینې په څنګ کې وه)؛ نو بېشکه ما هېر کړ (بیان د حال د) ماهي، او هېره نه کړه له مانه دغه (پېښه) مګر شیطان چې یاد کړم هغه (تاته)، او ونیوله (دغه ماهي) لاره خپله په بحر کې ډېره عجیبه. وویل (موسی) همدغه (ورکول او هېرول د ماهي) هغه څه دي چې وو مونږ چې طلب کول مو، پس بېرته راوګرځېدل دواړه پر همغو قدمونو خپلو قدم په قدم.

تفسیر: غالباً هلته به له پخوا څخه کومه زیاته لاره نه وه وهلې شوې، نو ځکه دوی د خپلو قدمونو پر نښو بېرته ستانه (واپس) شول.

فَوَجَدَا عَبۡدًا مِّنۡ عِبَادِنَآ ءَاتَيۡنَٰهُ رَحۡمَةً مِّنۡ عِندِنَا وَعَلَّمۡنَٰهُ مِن لَّدُنَّا عِلۡمًا ﴿٦٥﴾

پس ومونده دوی دواړو یو بنده (خضر) له بندګانو ځمونږ چې ورکړی وو مونږ ده ته رحمت له نزده خپله، او ښوولی مو وه ده ته له جانبه خپله یو ډول علم، (چې موسی علیه السلام ته هغه علم نه وو).

تفسیر: بنده خضر علیه السلام وو، چې الله تعالی دی په خپل خصوصي رحمت سره پاللی وو، او له علمه یې وافره حصه ورعطاء فرمایلې وه، په دې کې اختلاف دی چې خضر علیه السلام رسول ومنلی شي؟ یا نبي؟ یا د ولي درجه ورته ومنله شي؟ د داسې مباحثو فیصلې په دې ځای کې نشي کېدی، خو بیا د دې احقر رجحان په دغه جانب دی چې دی نبي تسلیم کړی شي، او لکه چې د ځینو محققینو خیال دا دی: هغه انبیاء چې سره له نوي شریعت نه دي راغلي؛ هغوی ته هم دومره تصرّف او اختیار عطاء کیږي، چې د ځینو خصوصیه وو معاملو پر بناء د مستقل شریعت د کوم عام تخصیص یا د مطلق تقیید یا له عامه ضابطې د ځینو جزئیاتو استثناء وکړی شي.

همداسې خضر علیه السلام ته هم جزئي امتیازات حاصل وو، و الله أعلم، په هر حال موسی علیه السلام له خضر علیه السلام سره ملاقي شو، او وروسته له سلام او متعارف کلام څخه خضر علیه السلام د موسی علیه السلام د دغه سفر د سبب پوښتنه وکړه، موسی علیه السلام د خپل د دغه راتګ سبب وروښود، خضر علیه السلام وویل: «ای موسی علیه السلام! بېشکه چې الله تعالی ستا تربیت فرمایلی دی، خو خبره دا ده چې د الله تعالی له طرفه یو کوم علم چې ماته رابخښلی شوی دی؛ په دغه مقدار تاته نه دی درکړی شوی، او کوم علم چې تاته درکړی شوی دی؛ په هغه مقدار ماته نه دی راکړی شوی، وروسته له دې نه یوه چرچڼه یې ولیده چې له دغه سیند څخه یې اوبه څښلې؛ نو خضر علیه السلام موسی علیه السلام ته وویل چې: «ځما او ستا بلکه د ګردو مخلوقاتو د علم نسبت د الله تعالی د علم په مقابل کې همداسې دی لکه چې د دغه لوی لوی سیندونو د اوبو په مقابل کې یې هغه څاڅکي اوبه چې دغه چرچڼه یې پخپلې دغې وړوکې منبوکې سره څښې، دغه هم محض د تفهیم لپاره وو، که نه د متناهي او د غیر متناهي نسبت د لوی سیند او د څاڅکي سره بیخي نسبت نه لري، او په دغسې شیانو سره هغه څه مشابهت لري».

قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰ هَلۡ أَتَّبِعُكَ عَلَىٰٓ أَن تُعَلِّمَنِ مِمَّا عُلِّمۡتَ رُشۡدًا ﴿٦٦﴾

وویل دغه (خضر) ته موسی: آیا زه تابع شمه ستا په دې شرط سره چې وښیې ته ماته له هغه علمه چې ښوولې شوې ده تاته ښه لاره.

تفسیر: یعنې که اجازه دې وي؛ نو څو ورځې به له تاسې سره اوسېږم، او د دغه مخصوصه علم څخه به لږ څه شی در څخه زده کړم.

قَالَ إِنَّكَ لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرًا ﴿٦٧﴾ وَكَيۡفَ تَصۡبِرُ عَلَىٰ مَا لَمۡ تُحِطۡ بِهِۦ خُبۡرًا ﴿٦٨﴾

نو وویل (خضر موسی ته) چې بېشکه ته له سره به ونه کړی شې طاقت له ما سره د صبر. او څرنګه به صبر وکړې ته په هغه کار چې نه وي کړې احاطه تا په هغه کار له جهته د علم (او پوهې).

تفسیر: خضر علیه السلام د موسی علیه السلام د مزاج او د نورو خصوصیاتو د تخمین او اندازه کولو څخه وروسته پر دغه خبره پوهېدلی وو، چې دی له ما سره نشي اوسېدی، ځکه چې خضر علیه السلام مأمور وو چې د کونیه وو واقعاتو د جزئي علم له حاصلولو څخه وروسته موافق له هغه سره عمل وکړي، او موسی علیه السلام چې د کوم علم

حامل وو، د هغوی تعلّق له تشریعیه وو قوانینو او کلیاتو سره وو، بناء علیه په هغو جزئیاتو کې چې د عوارضو او خاصه وو خصوصیاتو له سببه پر ظاهري عمومي ضابطه عمل نه کېده؛ نو موسی علیه السلام د خپلو معلوماتو پر بناء هرومرو اعتراض او تنقید کوي، او د صبر او سکوت او انتظار پر مسلک به تر ډېر مدّت پورې نشي قائم پاتې کېدی، او آخري نتیجه به داسې واقع کېږي چې مونږ به سره بېلېږو.

قَالَ سَتَجِدُنِيٓ إِن شَآءَ ٱللَّهُ صَابِرًا وَلَآ أَعۡصِي لَكَ أَمۡرًا ﴿٦٩﴾

وویل (موسی خضر ته) چې ژر به ومومې ته ما که اراده وفرمایي الله صبر کوونکی، او نافرماني به نه کوم ستا په هیڅ یو امر (حکم) کې.

تفسیر: د دغه وعده کولو په وخت کې د دغې خبرې تصوّر هم موسی علیه السلام ته نشو کېدی چې د داسې یو مقرّب او مقبول بنده څخه به داسې یو حرکت لیدل کېږي چې نه یوازې د موسوي شریعت بلکه د عمومي شرائعو او اخلاقو هم مخالف او مغائر وي، غنیمت دی چې ده «ان شاء الله» ورسره فرمایلې وه، که نه له قطعي وعدې څخه تخلّف د یو اولوالعزم نبي له شانه سره نه وي لایق.

قَالَ فَإِنِ ٱتَّبَعۡتَنِي فَلَا تَسۡـَٔلۡنِي عَن شَيۡءٍ حَتَّىٰٓ أُحۡدِثَ لَكَ مِنۡهُ ذِكۡرًا ﴿٧٠﴾

نو وویل (خضر موسی ته): پس که ته متابعت کوې ځما؛ پس پوښتنه مه کوه له مانه د هیڅ څیز تر هغه پورې چې زه شروع وکړم تاته د هغه ذکر (او بیان).

تفسیر: یعنې که کومه خبره په ظاهري ډول سره ناحقه په نظر درشي؛ نو علی الفور پر ما باندې تنقید یې مه کوه ! څو زه پخپله هغه خبره تاته شروع کړم.

فَٱنطَلَقَا حَتَّىٰٓ إِذَا رَكِبَا فِي ٱلسَّفِينَةِ خَرَقَهَاۖ قَالَ أَخَرَقۡتَهَا لِتُغۡرِقَ أَهۡلَهَا لَقَدۡ جِئۡتَ شَيۡـًٔا إِمۡرًا ﴿٧١﴾

پس دواړه روان شول تر هغه پورې چې سواره شول په بېړۍ کې، نو سورۍ کړه (خضر) هغه بېړۍ، وویل (موسی) آیا سورۍ دې کړه دا (بېړۍ) لپاره د دې چې غرق کړې اهل د دې، خامخا په تحقیق ودې کړ یو کار ناشنا.

تفسیر: کله چې دوی پر هغې بېړۍ سورېدل، بېړۍ وانانو خضر علیه السلام وپېژند، او ترې یې اجرت او باړه ونه غوښت، او وېړیا یې له سینده پورې ویست، نو د هغه احسان په بدل کې د دغه نقصان د لیدلو څخه موسی علیه السلام ته ډېر زیات تعجّب پیدا شو، لیکن بېړۍ په پوره ډول سره ساحل ته نژدې شوې وه چې دا یې سورۍ کړه، نو ځکه خلقو له ډوبېدلو څخه نجات وموند، او تخریق یې هم په دغه صورت سره وو چې یوه دړه (تخته) یې ویسته، یعنې عیبجنه یې کړه.

قَالَ أَلَمۡ أَقُلۡ إِنَّكَ لَن تَسۡتَطِيعَ مَعِيَ صَبۡرًا ﴿٧٢﴾ قَالَ لَا تُؤَاخِذۡنِي بِمَا نَسِيتُ وَلَا تُرۡهِقۡنِي مِنۡ أَمۡرِي عُسۡرًا ﴿٧٣﴾

وویل (خضر موسی ته) آیا ما نه وو ویلي: بېشکه ته له سره به ونه کړې شې طاقت له ما سره د صبر.
وویل (موسی خضر ته) مه نیسه ما په هغه کار چې هېر کړی مې وو (چې هغه وصیت ستا دی)، او مه غورځوه ماته په دې کار ځما (چې متابعت یا نسیان دی) اشکال او سختي.

فَانْطَلَقَا ۚ حَتّٰىٓ اِذَا لَقِيَا غُلٰمًا فَقَتَلَهٗ ۙ قَالَ اَقَتَلْتَ نَفْسًا زَكِيَّةً ۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ ؕ لَقَدْ جِئْتَ شَيْـًٔا نُّكْرًا ﴿۷۴﴾

پس بيا روان شول تر هغه پورې چې پيښ شول پر يو هلك؛ پس مړ كړ (خضر) هغه (هلك)، وويل (موسى خضر ته) آيا مړ دې كړ يو نفس پاك بې ګناه غير له عوضه د بل نفس، خامخا په تحقيق را دې وړ (ودې كړ) يو كار ښكاره ناروا.

تفسير: يو كلي ته نژدې ځو هلكانو پخپلو منځونو كې سره لوبې كولې، د دوى له منځه يو هلك يې چې ډېر ښكلى او هوښيار او پوه ښكارېده؛ ونيوه او مړ يې كړ، او له هغه ځايه په تلوار سره روان شو.

﴿نَفْسًا زَكِيَّةً﴾ الآية ـ يعنې ځو هلك بالغ نشي؛ پر ده باندې هيڅ ګناه نه اوړي، دغه لفظ ظاهراً د هغه په عدم بلوغ اشاره او تأييد كوي، اګر كه نورو ته د تأويل ځاى په كې نشته.

﴿شَيْـًٔا نُّكْرًا﴾ الآية ـ يعنې اول خو نابالغ په قصاص كې هم وژلى كېدى نشي، علاوه پر دې دلته د قصاص كومه خبره هم په منځ كې نه وه، نو بيا له دې نه زياته نامعقوله به څه وي؟ (چې بې سببه يو بې ګناه نفس ووژلى شي؟).

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكَ اِنَّكَ لَنْ تَسْتَطِيْعَ مَعِيَ صَبْرًا ﴿۷۵﴾

نو وويل (خضر موسى ته) آيا ما نه وو ويلي تاته چې بېشكه ته له سره به ونه كړى شې طاقت له ما سره د صبر.

تفسير: ځكه چې داسې حالات او واقعات دروړاندې كېږي چې ته د هغو په كتلو سره صبر كولى نشې، او نه پرې چپ پاتې كېدى شې، لكه چې همداسې هم وشو.

قَالَ اِنْ سَاَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍۭ بَعْدَهَا فَلَا تُصٰحِبْنِيْ ۚ قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّيْ عُذْرًا ﴿۷۶﴾

نو وويل (موسى) كه چېرې وپوښتم زه تا (اى خضره) د څه شي (چې صادر شي له تا) وروسته له دې سواله؛ پس ملګرتيا مه كوه له ما سره په تحقيق ورسېدې ته له طرفه ځما عذر ته.

تفسير: موسى عليه السلام داسې تخمين فرمايلى وو، چې د خضر عليه السلام د دغو حيرانوونكو واقعاتو ته په صبر او سكوت سره كتل ډېر درووند او لوى زړه غواړي، نو ځكه د خپل د زړه آخري خبره يې وويله، چې كه په دغه مرتبه بيا ترې پوښتنه وكړم؛ نو دې مې بيا له خپله ځانه سره نه ملګرى كوي، او دى به پخپل دغه عمل كې معذور وي، او ځما له لوري كوم الزام پر هغه باندې نشي عائد كېدى، ځكه چې ده د دريو مرتبو موقع راكړه، او ده پخپله د حجّت اتمام فرمايلى دى.

فَانْطَلَقَا ۫ حَتّٰىٓ اِذَآ اَتَيَآ اَهْلَ قَرْيَةِ ۣاسْتَطْعَمَآ اَهْلَهَا فَاَبَوْا اَنْ يُّضَيِّفُوْهُمَا فَوَجَدَا فِيْهَا جِدَارًا يُّرِيْدُ اَنْ يَّنْقَضَّ فَاَقَامَهٗ ؕ

بيا روان شول دواړه، تر هغه پورې كله چې راغلل اهل د يوه كلي ته؛ نو طعام وغوښت دوى له خلقو د هغه (كلي) څخه، پس منع راوړه (هغو خلقو) له دې نه چې مېلمستيا وركړي دغه خلق دوى ته، بيا وموند دوى (دواړو) په هغه كلي كې يو دېوال چې اراده يې وه چې ونړېږي (يعنې نژدې وو لوېدلو ته) پس سم كړ (خضر) هغه دېوال.

تفسیر: یعني یوه کلي ته ورسېدل او د هغه له خلقو سره یې ملاقات او کتنه وکړه، او داسې به یې ګڼل چې د دغه کلي خلق به د دوی سره د مېلمنو سلوك وکړي، او ډوډۍ به ورکړي، مګر دوی د موسی او خضر علیهما السلام په شان عزیزو مقرّبانو د مېلمستیا څخه انکار وکړ، نو د داسې معاملې د لیدلو څخه داسې په کار وو، چې پر داسې تنګ زړه او بې مروته خلقو دوی په قهر بده، مګر خضر علیه السلام د قهر په ځای پر دوی احسان وفرمایه، د دوی یو لوی دېوال ځوړند او کوږ شوی وو، او نژدې وو چې ونړېږي، او خلق د هغه د چارچاپېره لرې ګرځېدل، خضر علیه السلام لاس او پښې ورلوځې (متې ونغاړلې) کړې او هغه ځوړند دېوال یې ورسم کړ، او د انهدام له حالته یې وساته.

قَالَ لَوْ شِئْتَ لَتَّخَذْتَ عَلَيْهِ أَجْرًا ﴿٧٧﴾

وویل (موسی خضر ته) که اراده کړې وی تا (د اخیستلو د اجر)؛ نو خامخا به دې اخیستې وه (په سازولو د دې دېوال) مزدوري.

تفسیر: یعني د دغه کلي خلقو د مېلمنو حق ونه پېژند، چې څمونږ مېلمستیا یې کړې وی، تا ولې خوشې ویړیا د دوی ځوړند دېوال ورتینګ کړ؟ که د هغه څه معاوضه دې اخیستې وی؛ نو څمونږ خوراك او نور ضروریات به ترې په لاس راتله، او دغه تنګ زړو بخیلانو ته به هم ترې لږ څه تنبیه کېده، ګوندې دوی به پر خپلې دغې بد اخلاقی او بې مروتی لږ شرمېدل.

قَالَ هَٰذَا فِرَاقُ بَيْنِي وَبَيْنِكَ ۚ سَأُنَبِّئُكَ بِتَأْوِيلِ مَا لَمْ تَسْتَطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٧٨﴾

وویل (خضر موسی ته) دا دی وخت د بېلتون په منځ څما او ستا کې، اوس به ژر خبر کړم تا (ای موسی!) په غرض د هغه کار چې ونه کړی شو تا طاقت په هغه باندې د صبر.

تفسیر: یعني له هغې وعدې سره سم بنایي چې اوس له ما څخې تاسې بېلتون وفرمایئ! څما او ستا موافقت او ګذاره سره ګرانه ده، لیکن پخوا له بېلتانه غواړم چې د دغو تېرو دریو واړو واقعاتو پټ اسرار تاسې ته درښکاره کړم، چې د هغو په فکر او چُرت (خیال) کې له تاسې څخه د صبر او استقامت شان قائم نشو پاتې.

أَمَّا السَّفِينَةُ فَكَانَتْ لِمَسَاكِينَ يَعْمَلُونَ فِي الْبَحْرِ فَأَرَدتُّ أَنْ أَعِيبَهَا وَكَانَ وَرَاءَهُم مَّلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا ﴿٧٩﴾

هر چې هغه بېړۍ (چې ما سوری کړې وه)؛ نو وه لپاره د هغو عاجزانو چې کار به یې کولو په بحر (دریاب) کې، نو وغوښته ما چې عیبجنه کړم هغه، حال دا چې وو لږ څه لرې له دوی نه یو باچا چې اخیسته به یې هره یوه بېړۍ په زور سره (نو ځکه مې سوری کړه).

تفسیر: یعني په هم هغه لوري چې دغه بېړۍ روانه وه، په هم هغه طرف یو ظالم باچا وو، چې هره یوه جوړه بېړۍ به یې په زور سره نیوله، او پخپل کار کې د بیګار په ډول به یې په کار اچوله، نو ما وغوښته چې هغه بېړۍ عیبجنه کړم څو د هغه ظالم پاچا له بیګاره خلاصه او د همدغو مسکینانو د کار لپاره هم هغسې ورانه او ویجاړه پاتې شي، ځکه چې په همدغو ایامو کې د هغه پاچا سړي په بېړۍ پسې راځي، کله چې هغه سوری او عیبجنه وومي؛ نو د هغې د اخیستلو څخه به سترګې واړوي.

وَأَمَّا الْغُلَامُ فَكَانَ أَبَوَاهُ مُؤْمِنَيْنِ فَخَشِينَا أَن يُرْهِقَهُمَا طُغْيَانًا وَكُفْرًا ﴿٨٠﴾

او هر چې هغه هلك وه (چې وژلی وو ما) پس وو مور او پلار د ده مؤمنان، پس وویرېدو مونږ له دې چې وبه رسوي (مجبوره به کړي) دوی په سرکشی او کفر (که ژوندی پاتې شي).

تفسير: اګر که فطرتًا هر مولود مسلمان پيدا کيږي، مګر وروسته له هغه د خارجي اثراتو تر تأثير لاندې راغلی په همدغه هلکتوب کې د ځينو خرابو اعمالو اساس او بنياد په کې لوېږي، چې د هغه کامل علم يواځې پاک الله ته وي.

د دغه هلک په نسبت رب العزّت خضر عليه السلام ته پوهه او خبر ورکړی وو، چې د هغه بنياد پر خرابۍ او شرارت باندې مرکزيت نيولی دی، که کبارت ته ورسيږي؛ د ده د مور او پلار د کفر او معصيت او مذلّت سبب ګرځي، نو د داسې يو هلک وژل د هغه د والدينو لپاره رحمت او د هغوی د ديني حفاظت سبب وګرځېد، د الله تعالی دا اراده وه؛ چې د هغه مور او پلار پر خپل ايمان قائم اوسي، او د الله تعالی حکمت مقتضي وو چې راتلونکې خطره د دوی له مخې لرې شي، نو خضر عليه السلام ته يې حکم وکړ، چې دغه هلک ووژنه، ده د پاک الله د وحي په امتثال هغه هلک ووژلو.

دلته د خضر عليه السلام په ذريعه د هغه يوه نمونه ورښوول مقصود وو، چې د پاک الله د حکمتونو او د ده د تکوينيه وو مصالحو احاطه د هيچا له لاسه نه ده پوره، کله د يوې واقعې ظاهري صورت په ظاهر کې خراب ښکاري؛ ليکن هغه څوک چې د دغې واقعې په باطني اعماقو او زواياوو باندې معلومات لري، هغه پوهيږي چې په دغه کې ډېر حکمتونه او مصالح پراته دي، خضر عليه السلام د هغو مسکينانو د بېړۍ دړه ورماته کړه، حال دا چې هغوی له ده سره ښه او احسان کړی وو، او بلا اجرت يې دی پر بېړۍ سور کړی وو، يو لوبې کوونکې پيمخي هوښيار هلک يې او بېګناه وواژه، چې په ظاهر کې دغه حرکت نهايت خراب ښکاره کېده، ديوال يې سم او ساز کړ چې ظاهراً يې پر هغو کليوالو احسان وکړ؛ چې هغوی په ډېرې بې مروتی له دوی سره معامله کړې وه، که پخپله خضر عليه السلام په آخر کې خپل د دغو اعمالو توجيهات نه وی بيان کړي؛ نو تر نن ورځې پورې به ټول جهان د چرت په سيند کې ډوب وو، يا (العياذ بالله) خضر عليه السلام به يې د طعن او تشنيع هدف کولو، له همدغو مثالونو څخه د الله تعالی د افعالو او د ده د حکمتونو اندازه وکړئ!.

فَأَرَدْنَا أَن يُبْدِلَهُمَا رَبُّهُمَا خَيْرًا مِّنْهُ زَكَوٰةً وَأَقْرَبَ رُحْمًا ﴿٨١﴾

نو وغوښته مونږ دا چې بدل ورکړي دوی ته رب د دوی (بهتر غوره) له دې هلک څخه په پاکی (اصلاح) کې، او ډېر نژدې به وي له جهته د رحم مهرباني.

تفسير: يعني د هغه هلک په وژلو سره د ده د والدينو ايمان محفوظ پاتې شو، او هغه صدمه چې دوی ته ورسېده؛ الله تعالی اراده لري چې د هغې تلافي په داسې يوه مولود سره وکړي، چې په اخلاقي صفاتو او مزاياوو د هغه مقتول هلک څخه ډېر ښه او د مور او پلار د شفقت او مهرباني مورد وګرځي، او هغه به د خپل مور او پلار سره زيات محبّت ولري، او په ډېر تعظيم او ښه سلوک به ورو‌راندې کيږي.

وَأَمَّا الْجِدَارُ فَكَانَ لِغُلَامَيْنِ يَتِيمَيْنِ فِي الْمَدِينَةِ وَكَانَ تَحْتَهُ كَنزٌ لَّهُمَا وَكَانَ أَبُوهُمَا صَالِحًا فَأَرَادَ رَبُّكَ أَن يَبْلُغَا أَشُدَّهُمَا وَيَسْتَخْرِجَا كَنزَهُمَا رَحْمَةً مِّن رَّبِّكَ وَمَا فَعَلْتُهُ عَنْ أَمْرِي ذَٰلِكَ تَأْوِيلُ مَا لَمْ تَسْطِع عَّلَيْهِ صَبْرًا ﴿٨٢﴾

او هر چې (هغه) ديوال وو؛ پس وو د هغو دوو هلکانو يتيمانو په (هغه) ښار کې، او وه لاندې د هغه خزانه د دغو دواړو، او وو پلار د دوی صالح، نو اراده وکړه رب ستا چې ورسيږي (دغه دواړه) قوّت (د ځلميتوب) خپلو ته او بيا راوباسي هغه خزانې خپلې، (محض) له جهته د رحم مهرباني له جانبه د رب ستا، او نه دي کړي ما دغه تېر اعمال (چې تا وليده) له خپله ځانه (په حکم

او فکر خپل، بلکه دي کې د الله حکم همداسې وو)، دغه دي (درې واړه) ځوابونه د هغو پېښو چې طاقت نشو کولی تا پر هغه د صبر.

تفسیر: یعنې که هغه دېوال لوېده؛ نو د هغو یتیمانو هغه خزانه چې ترې لاندې خښه کړی شوې وه، راښکاره کېده، او بدنیتو خلقو به هغه رایستله، د دغو یتیمانو پلار یو ښه صالح سړی وو، د هغه د نېکۍ په رعایت د الله جلّ جلاله اراده داسې وشوه چې د دغو یتیمانو د مال حفاظت وکړی شي، نو ما د الله جل جلاله په حکم هغه دېوال سم کړ، چې هغه هلکان وروسته له ځلمیتوبه د خپل پلار خزانه بیا ومومندلی شي.

تنبیه: د دې قصې په شروع کې د خضر علیه السلام د نبوّت او ولایت په متعلق څه شی چې مونږ لیکلي دي، هغه دې بیا دلته یو ځلې ولوستل شي.

وروسته د «ذوالقرنین» قصه راځي، چې دغه هم د هغو دریو شیانو څخه ده، چې د هغو په نسبت د یهودانو په مشوره قریشو پوښتنه کړې وه، د «روح» په متعلق لازم جواب د «بني اسرائیل» د سورت په ابتداء کې معلومات ورکړ شو، دغه دی چې د درېیم سوال په نسبت اوس لازم ارشاد کېږي.

وَيَسْـَٔلُونَكَ عَن ذِى ٱلْقَرْنَيْنِ ۖ قُلْ سَأَتْلُوا۟ عَلَيْكُم مِّنْهُ ذِكْرًا ﴿٨٣﴾ إِنَّا مَكَّنَّا لَهُۥ فِى ٱلْأَرْضِ وَءَاتَيْنَٰهُ مِن كُلِّ شَىْءٍ سَبَبًا ﴿٨٤﴾

او پوښتنه کوي مشرکان له تا نه له قصې د ذوالقرنین؛ ووایه (ای محمده ! دوی ته): اوس به زه ولولم پر تاسې له ده څخه احوال. بېشکه چې مونږ قدرت ورکړی وو ده ته په ځمکه کې، او ورکړی وو مونږ ده ته (له هر محتاج الیه) څیز څخه یوه لاره (روښانه رسوونکې مقصد ته).

تفسیر: هغه پاچا ته ځکه «ذوالقرنین» وایي چې د دنیا دواړو څنډو (مشرق او مغرب) ته تللی وو، ځینې وایي چې دغه د رومي «اسکندر» لقب دی.

ځینې وایي: کوم بل مقبول دیندار الله منونکی پاچا تېر شوی وو.

«حافظ ابن حجر رحمه الله» په «فتح الباري» کې په متعددو وجوهو او دلائلو سره دغه دویم قول ته ترجیح ورکړې ده، او «حافظ ابن کثیر رحمه الله» هم دې قول ته ترجیح ورکړې ده.

د روایاتو له مجموعې څخه ظاهرېږي چې «ذوالقرنین» د ابراهیم علیه السلام معاصر وو، او د ده په دعاء سره پاک الله ده ته خارق العاده سامان او وسائل عطاء فرمایلی وو، چې د هغو په ذریعه ده ته د مشرق او مغرب په سفر کې بری په برخه شو، او پر محیر العقولو فتوحاتو یې قدرت وموند.

فَأَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٨٥﴾ حَتَّىٰٓ إِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ ٱلشَّمْسِ وَجَدَهَا تَغْرُبُ فِى عَيْنٍ حَمِئَةٍ

پس ونیوله ده لاره (او هغه اسباب چې ویې رساوه مغرب ته). تر هغه پورې چې ورسېد ځای د پرېوتلو د لمر ته، نو ویې مونده دغه (لمر) چې ډوبېده په (لویه) چینه کې له تورو خټو.

تفسیر: یعنې د سفر ترتیب او تجهیز او سر رشته یې وکړه، او پیروي وکړه ذوالقرنین د هغې لارې چې د مغرب په لورې تله، تر هغه پورې چې ورسېد ځای د پرېوتو د لمر ته؛ نو ذوالقرنین ومومند دغه لمر چې ډوبېده په یوه لویه چینه کې له تورو خټو، یعنې داسې یې په نظر راغی لکه چې په سمندر کې سفر کوونکو ته هم ښکاري چې لمر له اوبو څخه وځي، او په اوبو کې ډوبیږي.

وَّوَجَدَ عِنْدَهَا قَوْمًا ۬ؕ قُلْنَا يٰذَا الْقَرْنَيْنِ اِمَّآ اَنْ تُعَذِّبَ وَاِمَّآ اَنْ تَتَّخِذَ فِيْهِمْ حُسْنًا۝۸۶

او ويې مونده نژدې هغه ته يو قوم (د كفارو)، وويل مونږ: اى ذوالقرنينه ! يا خو په عذاب كړه دغه خلق (كه ايمان نه راوړي په قتل سره) يا ونيسه په دوى كې يوه ښه لاره (كه ايمان راوړي په ارشاد او نصيحت سره).

تفسير: مونږ «ذوالقرنين» ته اختيار وركړ، چې كه غواړې هغوى ووژني، يا ړومبى د اسلام په لوري دعوت او بلنه ورته وركړي، نو «ذوالقرنين» دغه دوهم شقّ اختيار كړ.

قَالَ اَمَّا مَنْ ظَلَمَ فَسَوْفَ نُعَذِّبُهٗ ثُمَّ يُرَدُّ اِلٰى رَبِّهٖ فَيُعَذِّبُهٗ عَذَابًا نُّكْرًا۝۸۷ وَاَمَّا مَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهٗ جَزَآءَ ۨالْحُسْنٰى ۚ وَسَنَقُوْلُ لَهٗ مِنْ اَمْرِنَا يُسْرًا۝۸۸

نو وويل (ذوالقرنين) هر هغه څوك چې ظلم يې وكړ (په نفس خپل په دوام د كُفر) پس ژر به عذاب كړو دى (په دنيوي عذاب)، بيا به بوتلى شي رب خپل ته؛ پس عذاب به كړي (الله) دى په عذاب لوى سره (په عقبى كې). او هر هغه چا چې ايمان يې راوړ او عمل يې وكړ صالح، پس ده ته ده جزاء نېكه (په دارينو كې چې نعمت او جنت دى)، او ژر ده چې وبه وايو ده ته له كاره خپله آسانه (په ده باندې).

تفسير: يعني په آخرت كې به نيكي وومي او په دنيا كې مونږ پر دوى څه سختي نه راولو، بلكه د خپل كار لپاره هر كله چې دوى ته كومه خبره ووايو؛ نو په سهولت او نرمى سره ورته وايو، في الحقيقت هر هغه پاچا چې عادل وي؛ د هغه كار او د عمل طرز به همداسې وي، چې له بدانو سره بدي كوي، او هغوى په سزا رسوي، او له نېكانو سره لطف او نرمي كوي، لكه چې «ذوالقرنين» همدغه طريقه ځان ته غوره كړې وه.

ثُمَّ اَتْبَعَ سَبَبًا۝۸۹ حَتّٰٓى اِذَا بَلَغَ مَطْلِعَ الشَّمْسِ وَجَدَهَا تَطْلُعُ عَلٰى قَوْمٍ لَّمْ نَجْعَلْ لَّهُمْ مِّنْ دُوْنِهَا سِتْرًا۝۹۰

بيا يې ونيوله بله لاره (او هغه اسباب چې رساوه يې مشرق ته). تر هغه پورې چې ورسېد ځاى د راختلو د لمر ته؛ نو ويې موند هغه (لمر) چې راخوت پر يوه قوم باندې چې نه وه ګرځولې مونږ دوى ته له لاندې د دې (لمر) كومه پرده.

تفسير: يعني د مغربي سفر څخه فارغ شو، او د مشرق په طرف د خپل سفر په تجهيز او ترتيب مشغول شو، په لوى قرآن او حديث كې دغه نه ده تصريح شوې چې د «ذوالقرنين» دغه ټول سفرونه د فتوحاتو او ملك نيولو لپاره وو، ممكن دى چې د محض سير او سياحت په ډول وي، ده د مشرق په انتهاء كې داسې قوم وليد، چې د لمر پلوشې مستقيمًا ورسېدې، دا خلق به وحشيان او ځنګليان وي، د كور جوړولو او د چت پټولو چل به يې هم نه وو زده، يا به په كې دود (رواج) او دستور نه وو، لكه چې اوس هم په ډېرو وحشيو او ځنګليو او ځينو كوچيانو كې همدغه دود او دستور او رواج ليدل كيږي.

كَذٰلِكَ ؕ وَقَدْ اَحَطْنَا بِمَا لَدَيْهِ خُبْرًا۝۹۱

هم داسې وو (حال د ذوالقرنين چې مذكور شو) او په تحقيق احاطه كړې وه مونږ په هغه شي باندې چې د ده څخه وو (له لښكرو او لوازمو) له جهته د خبر دارى.

**تفسیر:** یعني د «ذوالقرنین» د مشرق او د مغرب د سفر کوم کیفیت چې بیان کړی شو؛ هغه په واقع کې هم داسې دی، هغه وسائل چې د ده سره وو، او هغه حالات چې ده ته وروړاندې شوي دي؛ پر هغو ټولو څمونږ علم محیط دی، ښایي چې مؤرخینو به په دغه مورد کې بل څه ویل، او هغه به في الحقیقت هم دغومره قدر وي چې وفرمایه شو.

ثُمَّ أَتْبَعَ سَبَبًا ﴿٩٢﴾ حَتَّىٰ إِذَا بَلَغَ بَيْنَ السَّدَّيْنِ وَجَدَ مِن دُونِهِمَا قَوْمًا لَّا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ قَوْلًا ﴿٩٣﴾

بیا ونیوله ده بله لاره (او تیار یې کړ نور اسباب). تر هغه پورې چې ورسېد منځ د دواړو غرونو ته نو ویې موند وړاندې د دغو دواړو (غرونو) داسې قوم چې نه وو نژدې چې وپوهیږي په خبره (د ذو القرنین) باندې.

**تفسیر:** دغه دریم سفر یې پرته (علاوه) له مشرقه او مغربه د کوم دریم جهت په طرف کړی وو، مفسّرین دغه ته د شمالي سفر وایي، خو په قرآن او حدیث کې د هغه څه تصریح نشته.

**تنبیه:** د دغه قوم او «یأجوج، مأجوج» په منځ کې به دغسې دوه غرونه حائل وو، چې پر هغو به ختل ناممکن وو، خامخا د دغو دواړو غرونو په منځ کې به کومه دره وه، چې له هغې خلاصې لارې به «یأجوج، مأجوج» راتلل، او خلق به یې شکول، او راز راز ظلمونه او زیاتي به یې پرې کول، او بېرته به تلل.

قَالُوا يَا ذَا الْقَرْنَيْنِ إِنَّ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ فَهَلْ نَجْعَلُ لَكَ خَرْجًا عَلَىٰ أَن تَجْعَلَ بَيْنَنَا وَبَيْنَهُمْ سَدًّا ﴿٩٤﴾

وویل دغو ای ذوالقرنینه ! بېشکه چې یأجوج او مأجوج فساد کوونکي دي په ځمکه کې، پس آیا مقرّر کړو تاته څه خرج محصول لپاره د دې کار چې جوړ کړې ته په منځ څمونږ او په منځ د دوی کې یو دېوال.

**تفسیر:** د «ذوالقرنین» د فوق العاده اسبابو او وسائلو او قوّت او حشمت د لیدلو څخه دوی ته به داسې خیال پیدا شوی وي، چې څمونږ د دغو تکالیفو او مصائبو انسداد به د ده له لاسه پوره وي، نو ځکه یې عرض وکړ چې: «یأجوج، مأجوج» څمونږ په ملک لویه غلبه او شورماشور غورځوي، او تل راځي مونږ وژني، او څمونږ مال او شته تالا کوي، او مونږ په راز راز ربړو (تکلیفونو) آخته کوي، که تاسې څمونږ او د هغوی په منځ کې کوم ټینګ او کلک دېوال او سد راجوړ کړئ، چې مونږ پرې محفوظ شو، نو پر دغه کار هر څومره لګښت چې وشي؛ مونږ د هغه مال تأدیې ته حاضر یو، ښایي چې تاسې دغه مصرف څمونږ د مالیې او محصول او اجرت په شان تحصیل کړئ !.

**تنبیه:** «یأجوج مأجوج څوک دي»؟ په کوم ملک کې اوسیږي؟ د «ذوالقرنین» هغه جوړ کړی سد (د اوسپنې دېوال) چېرې دی؟ دا هغه سوالات دي چې د هغو متعلّق د مفسّرینو او مؤرخینو اقوال سره مختلف دي.

د اکثرو علماوو په نزد یأجوج ومأجوج د آدم علیه السلام اولاد دی د حواء رضي الله تعالی عنها نه، اوس دغه قوم چېرې دی؟ او د «ذوالقرنین» د اوسپنې دېوال چېرې واقع دی؟ نو هر هغه څوک چې دغه ګرد اوصاف تر خپل نظر لاندې ونیسي، چې د هغه ثبوت د دغه قوم او د اوسپنې د دېوال په متعلق په لوی قرآن او صحیحه وو أحادیثو کې شته، نو هغه به وایي: د هغو اقوامو او ملکونو او دیوالونو نښه او پته چې خلقو په خپله رایه سره ورکړې ده؛ پر هغو د دغو اوصافو مجموعې ځنې یو وصف هم نه موندلی کیږي، لهذا هغه خیالات صحیح نه ښکاري، او له صحیحه وو أحادیثو څخه انکار یا د نصوصو بعیده تأویلات له دې نه خلاف دي، پاتې شوه د مخالفینو دغه شُبهه چې مونږ ګرد د ځمکې مخ لټولی دی، مګر هیچېرې د دغو شیانو نښه او پته مو نه ده موندلې؟.

نو د دغې شُبهې د جوا ب لپاره ځمونږ مؤلفينو د پټې او ننبې ښوولو لپاره ډېر زيار (محنت) او کوښښ ايستلی دی، خو د دې صحيح جواب همدغه دی، چې «علامه آلوسي بغدادي» ورکړی دی.

«مونږ ته د هغه موقع نه ده معلومه، او ممکن دی چې ځمونږ او د هغه په منځ کې په دغه حاضره زمانه کې لوی لوی سيندونه حائل وي، او په هغه وخت کې له کومې لويې وچې سره لکه (سايبيريا) او (امريکا) به نښتې وي، او داسې دعوی چې مونږ پر ټول بر او بحر (وچه او لونده) حالاً وماضيًا وآتيًا محيط شوی يو واجب التسليم نه دی، عقلا جائز دی هم هغسې چې له نن ورځې (۱۳۲۳هـ ش) تر نژدې پنځه سوه کلونو د مخه پورې د امريکې براعظم نه وو راڅرګند شوی، اوس هم ويلی شو چې ممکن دی داسې بل کوم براعظم هم موجود وي چې تر اوسه پورې به مونږ له هغه ځنې معلومات نه لرو، او امکانات شته چې لږ وخت وروسته يا به مونږ هلته ورسيږو، يا هغه خلق به مونږ ته ځان ورسوي.

د سمندر د دېوال تحقيقات چې د «استراليا» په شمال شرقي ساحل کې واقع دی، او څه وخت پخوا له دې نه د يو برطانوي ساينس دان «ډاکټر سي ايم بنګ» تر کتنې او هداياتو جاري وو؛ دغه دېوال له زر ميله زيات اوږد او په ځينو ځينو مقاماتو کې تر دولسو ميلو پورې عريض او زر فوټه ارتفاع لري، چې پرې ډېر مخلوق هستوګنه لري، هغه ډله چې د دغه کار لپاره روانه شوې وه؛ خپل يو کلني تحقيقات يې پای (آخر) ته رسولي دي، چې د هغه د راپور د لوستلو څخه د سمندر عجيب او غريب اسرار منکشف کيږي، او انسان ته د حيرت او استعجاب يوه نوې دنيا معلوميږي، بيا نو څرنګه داسې دعوی کېدی شي چې مونږ پر ګردو بريه وو او بحريه وو مخلوقاتو او موجوداتو خبردار، او د هغو مکمل اکتشافات حاصل کړي دي؟ ! په هر حال کله مخبر صادق چې د هغه صدق په قطعيه وو دلائلو ثابت دی؛ د دې دېوال څخه د هغه د اوصافو خبر راکړی دی؛ نو پر مونږ واجب دي چې د هغه تصديق وکړو، او د هغو د واقعاتو په انتظار کې سترګې په لار ولرو، چې د مشککينو او منکرينو على الرغم هرومرو راتلونکې دي.

قَالَ مَا مَكَّنِّي فِيهِ رَبِّي خَيْرٌ فَأَعِينُونِي بِقُوَّةٍ أَجْعَلْ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ رَدْمًا ﴿۹۵﴾

ووېل (ذوالقرنين) هغه چې اقتدار راکړی دی ماته په هغه کې رب ځما خير (ډېر غوره) دی (له ورکړې ستاسې نه چې محصول دی)، پس مرسته وکړئ تاسې له ما سره په (انساني) قوّت سره؛ چې جوړ کړم په منځ ستاسې او په منځ د دوی کې يو پرېړ (او محکم) دېوال.

تفسير: يعنې مال له ما سره ډېر دی، مګر په لاسونو او پښو له ما سره په زيار (محنت) او زحمت تېرولو کې مرسته (مدد) وکړئ !.

آتُونِي زُبَرَ الْحَدِيدِ حَتَّى إِذَا سَاوَى بَيْنَ الصَّدَفَيْنِ قَالَ انْفُخُوا حَتَّى إِذَا جَعَلَهُ نَارًا قَالَ آتُونِي أُفْرِغْ عَلَيْهِ قِطْرًا ﴿۹۶﴾

راواخلئ تاسې ماته تختې د اوسپنې، تر هغه پورې (يې اينبودلې چې) برابر شو دا دېوال په منځ د دوو څوکو (د غرو)، نو ووېل (ذوالقرنين) چې پو کړئ ! (پر دغو سکرو چې اچولې شوي دي په منځ د تختو د اوسپنې کې، نو پو يې کړل) تر څو چې يې وګرځوله دغه (اوسپنه) اور، ووېل (ذوالقرنين) راوړئ ماته چې توی کړم په دې دېوال زېړ (ويلي شوی).

تفسير: يعنې ړومبی يې د اوسپنې لويې لويې تختې سر په سر لاندې باندې سره کېښودې، او يو له بل سره ټينګې او کلکې يې کړې، څه مهال چې د هغو لوړوالی د دواړو غرونو څوکو ته ورسېد (نو پرې لرګي او سکاره انبار کړل شو)، او خلقو ته يې امر ورکړ چې د دغه اور په لګولو او پو کولو کې راسره مرسته وکړئ (چې په يوه آن او يوه شېبه

کې له يوه سره تر بل سره پورې او له پاسه تر ښکته پورې يوځلي ولګيږي، او بيا ژر ترې لرې او ګوښه شيء)، کله چې اوسپنه د اور په شان سره او ګرد سره يو جسم شو، په دغه وخت ويلې شوی ژېړ يې پرې راتوی کړه، چې د هغو اوسپنو په درزونو او چادونو کې ننوتل، او بيخي يې نژدې او پيوست کړه، او ګرده سره يو شوه، او د يو سخت غرني دېوال په شان وګرځېد، دغه ګرد کارونه په دغه زمانه کې ظاهراً د يوه خارق العاده طريقې سره به انجام موندلی وي، چې ښايي هغه د «ذوالقرنين» له کرامته وګڼله شي، يا ممکن دی چې په هغه وخت کې به داسې اقسام آلات او اسباب موندلي کېده چې پر هغو اوس ځمونږ علم نه رسيږي.

فَمَا اسْطَاعُوا أَنْ يَظْهَرُوهُ وَمَا اسْتَطَاعُوا لَهُ نَقْبًا ﴿٩٧﴾

پس طاقت به نه وي د دوی چې وخيژي پرې (او ښکاره شي پرې له جهته د لوړوالي) او نه به طاقت وي د دوی دغه (غره) ته د سوري کولو (له جهته د سختوالي او پرېړوالي).

**تفسير:** يعني الله تعالی في الحال يأجوج مأجوج ته دغه قدرت نه دی ورکړی چې دغه دېوال سوری کړي، يا يې ونړوي او ترې تېر شي.

قَالَ هَذَا رَحْمَةٌ مِنْ رَبِّي فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ رَبِّي جَعَلَهُ دَكَّاءَ وَكَانَ وَعْدُ رَبِّي حَقًّا ﴿٩٨﴾

وويل (ذوالقرنين) دغه (اتمام د دېوال) او اقتدار ځمونږ په جوړولو د هغه يو رحمت دی له جانبه د رب ځما، نو هر کله چې راغله وعده د رب ځما (په خروج د دغو قبيلو)؛ نو وبه ګرځوي دا (سد) هوار برابر له ځمکې سره، او ده وعده د رب ځما حقه (رښتيا ثابته).

**تفسير:** يعني محض د الله تعالی په مهرباني دغه سد قائم شو، او تر معينه ميعاده پورې به قائم پاتې شي، له صحيحه وو أحاديثو څخه معلوميږي چې د عيسی المسيح عليه السلام د نزول او د دجّال د قتله وروسته قيامت ته نژدې د يأجوج مأجوج د وتلو وعده ده، نو دغه سد به له منځه لرې کړ شي، او دغه دېوال به دوی ونړوي، او په هومره يو کثير تعداد به دوی ترې ووځي او راتوييږي، چې د هغوی شمېر پرته له الله تعالی بل هيچا ته به نه وي معلوم، ټوله دنيا به د دوی له مقابلې عاجزيږي، مسيح عليه السلام ته به حکم ورکړ شي، چې ځما له خاصو بندګانو سره په «طور» باندې لاړ شه، بالآخر مسيح عليه السلام به د الله په دربار کې دعاء او راز او نياز وکړي، نو وروسته له هغه پر يأجوج مأجوج باندې يوه غيبي وباء مسلطه کيږي، او ګرد سره يوځلي مړه کيږي، زيات تفصيلات دې د أحاديثو په کتابونو کې په «باب أمارات الساعة» کې وکتل شي !.

دلته د ذوالقرنين حکايت تمام شو، نو بيا فرمايي الله تعالی:

وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَجَمَعْنَاهُمْ جَمْعًا ﴿٩٩﴾ وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا ﴿١٠٠﴾

او پرېږدو به ځينې د دوی په دغه ورځ کې چې موج به وهي (له ډېر ازدحامه او ننوځي) په ځينو نورو کې، او پو به کړی شي په صور (شپېلۍ) کې، پس راجمع به کړو مونږ دغه ټول (مخلوقات). او راوړاندې (نژدې او ښکاره) به کړو جهنّم په دغې ورځې کې کافرانو ته په وړاندې کولو سره (لپاره د هيبت).

**تفسير:** يعني يأجوج مأجوج د سمندر د موجونو او لويو څپو په شان بېشماره تعداد غونډ غونډ د لويو سيندونو د لويو لويو څپو په ډول راوځي او راتوييږي، يا يې دا مطلب چې د هول او خوف او وېرې او اضطراب لامله به ګرد مخلوقات

سره ګډوډ او خلط ملط شي، جن او انس به يو له بله سره ننوځي، او يو لوی شورماشور او سخته غلبله به جوړه شي، بيا به د قيامت علائم ښکاره شي، او د اسرافيل عليه السلام صور (شپېلی) به وپوکله شي، وروسته له هغه به ګرد خلق د الله تعالی په حضور کې د محشر په ډګر کې سره راټولېږي، او وړاندې به راځي، او دوزخ به د کفّارو په مخ کې وروړاندې کيږي، ښايي د کفّارو تخصيص د دې لپاره کړی شوي وي؛ چې اصلاً دوزخ د همدغو لپاره تيار شوی دی، او د دوی پر سترګو باندې په دنيا کې پردې لويدلې وې چې پر هغه يې يقين او باور کړی وی، او اوس هغه پرده ترې لرې شوې ده.

ﭐلَّذِينَ كَانَتْ أَعْيُنُهُمْ فِي غِطَاءٍ عَن ذِكْرِي وَكَانُوا لَا يَسْتَطِيعُونَ سَمْعًا ﴿١٠١﴾

هغه کافران چې وې سترګې د دوی په پرده کې (له ډېره غفلته) له ياده ځما، او وو دوی چې داوريدلو توان يې نه لرلو.

تفسير: يعنې پخپله د دوی د عقل سترګې نه وې پرانستلې؛ چې د الله جل جلاله دلائل او د قدرت نښې يې پرې لېدلې وی، او باور او يقين يې پرې راوړی وی، او د الله تعالی په ياد لګېدلې وی، او له ډېره ضده او عناده د هيڅا خبره يې نه اورېده، او هغه چې بل څا ده ته ورښوده؛ پر هغه پوهېدلې وی.

أَفَحَسِبَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن يَتَّخِذُوا عِبَادِي مِن دُونِي أَوْلِيَاءَ ۚ إِنَّا أَعْتَدْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ نُزُلًا ﴿١٠٢﴾

آيا ګمان کوي هغه کسان چې کافران شوي دي د دې چې ونيسي دوی بندګان ځما پرته له ما څخه دوستان (معبودان چې زه دوی نه په عذابوم، بلکه) تيار کړی مو دی جهنّم لپاره د کافرانو پړاو (يا مېلمستيا).

تفسير: آيا منکرين داسې ګمان کوي؛ چې ځما د خاصو بندګانو: مسيح عليه السلام، عُزير عليه السلام، روح القدس عليه السلام او ملائکو د عبادت کولو په سبب دوی د خپل حمايت اومرستې لپاره ودروي: ﴿كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا﴾ له سره داسې نه دی ! دوی پخپله به ستاسې د دغو حرکاتو څخه د بېزارۍ اظهار وفرمايي، او ستاسې په مقابل کې به د مدعي په شان په ضد او عناد د تاسې ودرېږي.

قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُم بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا ﴿١٠٣﴾ الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ﴿١٠٤﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) آيا خبر کړو تاسې په ډېرو سختو زيانکارانو باندې له جهته د عمله. دوی هغه کسان دي چې ورک کې دي منډې (او زيار) د دوی په دغه ژوندون لږ خسيس کې، حال دا چې دوی ګمان کوي د دې چې بېشکه دوی ښه کوي کار (او عمل، او په واقع کې داسې نه ده).

تفسير: يعنې د قيامت په ورځ کې له ټولو څخه په زياته خساره کې به هغه کسان وي؛ چې د دوی ټول فعاليت، مساعي او ځغلېدل يواځې د دنيا لپاره وو، او له سره د آخرت فکر به ورسره نه وو، محض دنيوي ترقيات او مادي کاميابی به يې خپله لويه ترقي او معراج ګڼه، يا به يې دا مطلب وي چې هغه کارونه چې دوی په دنيوي ژوندون کې نېک او ښه ګڼل أعم له دې نه چې هغه به په واقع کې ښه وو يا خراب؛ هغه ګرد د کفر له نحوسته هلته بېکاره ثابت شول، او ټول محنتونه يې توی او برباد لاړل، او ګرد سره خراب شول.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا ﴿۱۰۵﴾

دغه کسان (چې مخکې یاد شول) هغه کسان دي چې کافران شوي دي په آیتونو د رب خپل (په دنیا کې)، او په لقاء د دغه (الله په آخرت کې)، پس باطل ـ خراب شول عملونه د دوی، پس وبه نه دروو لپاره د دوی په ورځ د قیامت کې هیڅ وزن (ځکه چې حسنات نه لري، یا تله د نفعې به دوی ته نه دروو).

تفسیر: یعنې نه یې د الله تعالی دلائل منل، او نه یې داسې خیال وکړ چې کله به د هغه په مخ کې حاضریږم، نو د داسې کسانو ګرد زیار بېکاره ثابتیږي، ځکه چې د کافرانو حسنات مړه او بې اثره دي، او په ابدي ژوندون کې له سره په کار نه ورځي، نو اوس د دوی لپاره پرته له کفریاتو او سیئاتو یوه پله (پټ) څرنګه تلله شي؟ وزن (تلل) خو د موازنې لپاره وي، او موازنه د متقابلو شیانو کیږي، دلته خو د سیئاتو بالمقابل یو حسنه هم نشته، نو بیا وزن به د څه لپاره وي؟ یا دا چې وزن شته، مګر دوی ته دغه وزن هیڅ ګټه او منفعت نه رسوي، بلکه دوی ته لا زیان رسوي، او ښه پرې ملزم کیږي.

ذَٰلِكَ جَزَاؤُهُمْ جَهَنَّمُ بِمَا كَفَرُوا وَاتَّخَذُوا آيَاتِي وَرُسُلِي هُزُوًا ﴿۱۰۶﴾

دغه (دی چې اعمال د دوی باطل شول) جزا د دوی ده دوزخ په سبب د دې چې کافران شوي وو دوی، او نیولي وو دوی آیتونه ځما او رسولان ځما مسخره.

تفسیر: یعنې هغه ټوکې مسخرې مو چې کولې، او ملنډې مو چې وهلې؛ اوس د هغو خوند وڅکئ !.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَانَتْ لَهُمْ جَنَّاتُ الْفِرْدَوْسِ نُزُلًا ﴿۱۰۷﴾ خَالِدِينَ فِيهَا لَا يَبْغُونَ
عَنْهَا حِوَلًا ﴿۱۰۸﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ شته دوی ته جنّتونه د فردوس (اعلی ـ غوره)، بهتر ځای د هستوګنې (مېلمستیا پېشکشی). چې تل به وي په دغو (جنتونو) کې، نه به غواړي دوی له دغو (جنتونو) څخه ګرځېدل (او وتل بل ځای ته).

تفسیر: یعنې نه به ترې مړیږي، او تل تر تله به په هم هغه ځای کې خپل اوسېدل او هستوګنه غواړي، او شېبه په شېبه په تازه تازه نعمتونه وررسیږي، او له سره داسې کوم فکر او خیال به دوی ته نه پیدا کیږي، چې مونږ به له دغه ځایه بل ځای ته منتقل کړی شو.

قُلْ لَوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِكَلِمَاتِ رَبِّي لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ أَنْ تَنْفَدَ كَلِمَاتُ رَبِّي وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا ﴿۱۰۹﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) که شي (اوبه د) بحر سیاهي لپاره (د لیکلو) د کلماتو د رب ځما؟ نو خامخا تمام به شي بحر پخوا له هغه نه چې تمام شي کلمات د رب ځما (ځکه چې کلمات د الله غیر متناهي دي)، او اګر که راوړو په مثل د دغه بحر (نور بحار هم) مددګار.

تفسیر: د سورت په خاتمه کې دا راښیي چې د الله تعالی د علم او حکمت کلام او خبرې بې انتهاء دي، هغه خبرې چې ستاسې له ظرفه او استعداده او ضرورت سره لایقې دي؛ هغه مو دروښودې، دغه د الله تعالی د معلوماتو په مقابل کې دومره هم نه دي لکه یو څاڅکی د اوبو د سمندر په مقابل کې، فرض یې کړئ که د سمندر د ګردو اوبو څخه سیاهي جوړه شي، او په هغې د الله تعالی د خبرو په لیکلو لاس پورې کړی شي، او هغه د سمندر اوبه بیخي وچې شي، او بیا

دویم ځلي او دریيم ځلي بیا دغه سمندر ډک او تش شي؛ نو دغه سمندرونه به وچيږي، مګر د پاک الله جلّت عظمتُه وأعظم برهانُه خبرې او کلام نه ختميږي، له همدې ځایه ویوهېږئ چې د عظیم الشأن قرآن او نورو سماویه کتابونو په ذریعه اګر که ډېر وسیع علم په ډېر زیات مقدار چاته ورکړ شي؛ نو هغه هم د الله تعالی د علم په مقابل کې قلیل دی، اګر که في حدّ ذاته ورته کثیر هم ویلی شو.

قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ فَمَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا ﴿١١٠﴾

ووایه (ای محمده !) بېشکه همدا خبره ده چې زه یو بشر سړی یم په شان ستاسې، چې وحي راځي ماته، چې بېشکه همدا خبره ده چې معبود ستاسې معبود دی یو، پس هر څوک چې وي چې امید لري د (اخروي) ملاقات د رب خپل (په ښه وجه سره)؛ نو ښایي چې (تل) عمل وکړي عمل صالح، او نه دې شریکوي په عبادت د رب خپل کې هیڅوک.

تفسیر: یعني زه ستاسې په شان یو بشر او انسان یم، الله نه یم، چې اصلاً او ذاتاً ټول علوم او کمالات ماته حاصل دي، هو ! الله تعالی جل جلاله حقّاني علوم او قُدسي معارف ماته وحي رالیږي، چې په هغه کې اصل الأصول علم التوحید دی، د هغه په طرف زه تاسو ته دعوت ورکوم، هغه څوک چې د الله تعالی د لقاء شائق وي، یا د ده سره مقابل کېدلو څخه خائف وي؛ نو د هغه لپاره پکار دي چې ښه ښه کارونه او اعمال له شریعته سره موافق وکړي ! او د الله تعالی په بندګۍ کې هیڅوک په هیڅ یوه درجه کې ظاهراً او باطناً مل او شریک نه کړي ! یعنې د جلي شرک په شان د ریاء او نور خفي شرک څخه هم ځان وساتي، ځکه په هر عبادت کې چې د غیر الله شرکت وي؛ هغه به بېرته د هم هغه عابد په مخ ویشتل کیږي.

په دغه آیت کې یې اشاره فرمایلې ده، چې د نبي علم هم متناهي او عطایي دی، او د الله تعالی د علم په شان ذاتي او غیر متناهي نه دی، او همدا شان په آیت شریف کې په ښکاره أو مؤکد ډول بیان شوي چې محمد صلی الله علیه وسلم بشر أو انسان دی، امتیاز یې له نورو خلکو څخه دادی چې د الله تعالی لخوا ورته وحي کیږي او د رسالت په منصب مشرف او ګمارل شوی دی، نو هغه څوک چې د هغه له بشریت څخه انکار کوي او نور یې بولي په ښکاره د قرآنکریم د نصوصو مخالفت کوي.

تمّت سورة الکهف بفضل الله تعالی ومنّه، ولله الحمد.



# سُورَةُ مَرْيَمَ

«د (مریم) سورت مکي دی، پرته له (۵۸) او (۷۱) آیتونو څخه چې مدني دي، (۹۸) آیتونه او (۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۱۹) او په نزول کې (۴۴) سورت دی، وروسته د «فاطر» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

كٓهٰيٰعٓصٓ ۝١ ذِكْرُ رَحْمَتِ رَبِّكَ عَبْدَهٗ زَكَرِيَّا ۝٢

(دغه چې وروسته لوستلې کیږي) ذکر د رحمت مهرباني د رب ستا دی پر بنده خپل زکریا.

تفسیر: زکریّا علیه السلام د «بني اسرائیلو» د جلیل القدرو انبیاوو څخه دی، په بخاري شریف کې راغلي دي، چې ده د نجارۍ (ترکاڼۍ) کار او د خپل لاس د ګټې ډوډۍ به یې خوړله، د ده قصه پخوا له دې نه د آل عمران سورت په (۴) رکوع څمونږ د دې پښتو تفسیر کې لیکلې شوې ده، هلته دې بیا ولوستل شي !.

اِذْ نَادٰى رَبَّهٗ نِدَآءً خَفِيًّا ۝٣

کله چې غږ (سوال) یې وکړ رب خپل ته غږ (سوال) ورو (په نیمه شپه کې).

تفسیر: وایي چې د شپې په تیاره او خلوت کې په ورو غږ سره لکه چې د دعاء اصله قاعده ده دعا وکړه، ځکه چې داسې دعاء له ریاء څخه لرې او د اخلاص له کماله معموره وي، لکه چې د «الأعراف» سورت په (۷) رکوع کې تېر شو: ﴿اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً﴾، ښایي دغه خیال یې هم په زړه کې ګرځېدلی وي چې زه په دغه زړوالي کې څوی غواړم، که راپه برخه نشي؛ نو اورېدونکي خلق به راپورې خاندي، برسېره په هغه په زوړتوب کې طبعًا غږ هم ورو کیږي، او په طبیعي ډول سره هم زاړه ورو ورو غږیږي.

قَالَ رَبِّ اِنِّيْ وَهَنَ الْعَظْمُ مِنِّيْ وَاشْتَعَلَ الرَّاْسُ شَيْبًا وَّلَمْ اَكُنْۢ بِدُعَآئِكَ رَبِّ شَقِيًّا ۝٤

وویل (زکریا پخپله دعاء کې) ای ربه څما ! بېشکه زه چې یم سست ضعیف شوي دي ټول هډوکي له ما څخه او شعلې وهي سر (څما) له جهته د سپینوالي، حال دا چې هیچېرې نه یم پاتې شوی په سوال له تا نه ای ربه څما محروم ناامیده.

تفسیر: یعنې په ښکاره ډول سره د موت وخت قریب دی، څما د سر په ویښتانو کې د زوړتوب سپینوالی ځلیږي، او زه تر هډوکو پورې هم وچ شوی یم، نو ای پاک الله تعالی ! تا په خپل فضل او رحمت سره تل څما دعاوې قبولې کړې دي، او په مخصوصو مهربانیو سره دې روږدی (بلد) او عادي ګرځولی یم، نو اوس په دغه آخري وخت او زوړوالي کې به زه څرنګه ګمان وکړم چې څما دعاء به نه قبلوې؟ او له خپلې مهرباني او رحمت څخه به مې بې برخې او بې هیلې وګرځوې؟.

وَإِنِّي خِفْتُ الْمَوَالِيَ مِن وَرَآءِي وَكَانَتِ امْرَأَتِي عَاقِرًا فَهَبْ لِي مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا ۝ يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ وَاجْعَلْهُ رَبِّ رَضِيًّا ۝

او ببشکه زه ویریږم له دې خپلوانو (خپلو) له وروسته (د مرګه) ځما (د خرابولو د دین ستا)، او ده ښځه ځما شنډه؛ نو وبخښه ماته له طرفه خپله یو متولي (د دیني امورو حق وارث). چې میراث یوسي له ما څخه (دیني امور) او میراث یوسي (علم او حکمت) له آل د یعقوب نه، او وګرځوې دی ای ربه ځما غوره کړی شوی.

تفسیر: یعنې زه زوړ او سپین ږیری یم، او ښځه مې هم شنډه ده، د وړوکي پیدا کېدلو ظاهري سامان هیڅ نشته، لیکن ته پخپل لامحدوده قدرت او رحمت سره ماته هلک راعطاء کړی ! چې دیني خدمات ایفاء او سنبال کړي، او ستا د دغه مقدس أمانت بار پر خپلو اوږو واخیستی شي، ځما له لاسه په دغه ضعیفی او زړوالي کې څه کېدی شي، زړه مې غواړي چې یو داسې لایق ځوی ولرم، چې د خپل پلار او نیکونو مقدسه وظائف انجام او د دوی د علم او د حکمت او د نبوّت د کمالاتو وارث شي.

تنبیه: له صحیحه أحادیثو څخه ثابت دي، چې د انبیاوو علیهم السلام په مال کې وراثت نه جاري کیږي، د دوی وراثت د علم او حکمت په دولت کې نافذ کیږي، پخپله د أهل التشیع د «کافي کلیني» له مستنده کتابه هم په «روح المعاني» کې د همدغه مضمون څو روایات نقل کړی شوي دي، لهذا متعیّن دي چې په ﴿يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنْ آلِ يَعْقُوبَ﴾ کې مالي وراثت نه دی مراد چې د هغه تایید پخپله د آل یعقوب څخه کیږي، ځکه ظاهر دی چې د ګرد آل یعقوب د اموالو او املاکو وارث یواځې د زکریا علیه السلام ځوی به څه ډول کېدی شو؟ بلکه همدغه د وراثت ذکر په دغه موقع کې دغه راښکاره کوي، چې مالي وراثت نه دی مراد، ځکه چې دغه په ګرده دنیا کې مسلّمه ده چې ځوی د خپل پلار د مال وارث کېدی شي، نو بیا په دعاء کې د هغه ذکر چټي (فضول) او بېکاره وو، داسې خیال کول چې زکریّا علیه السلام د خپل مال او دولت په فکر او اندېښنه کې وو ،چې چېرې دغه مال او شته ځما له کوره ونه وځي، او دیني اعمامو او تربورانو او نورو خپلوانو کره لاړ نشي؛ نهایت سپک او ټیټ خیال دی.

يَٰزَكَرِيَّآ إِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَٰمٍ ٱسْمُهُۥ يَحْيَىٰ لَمْ نَجْعَل لَّهُۥ مِن قَبْلُ سَمِيًّا ۝

ای زکریا ! ببشکه مونږ زېری درکوو تاته په یو داسې هلک چې نوم یې یحیی دی، نه مو دی ګرځولی ده ته پخوا له دې نه په دغه نامه (او صفت بل همنامه).

تفسیر: یعنې دعا یې قبوله او د هلک زېری ورته وکړ شو، چې د هغه د نامه تجویز هم پخپله حق تعالی پخوا له تولّد په (یحیی) سره وفرمایل، او اسم هم داسې عجیب او په زړه پورې چې له دې نه پخوا پر بل هیچا نه وو ایښی شوی.

ځینو اسلافو دلته د (سمي) معنی په (شبیه) سره اخیستې ده، یعنې په دغه شان ـ صفت او ممیزه اخلاقو پخوا بل څوک نه دي تېر شوي، ښایي چې دغه مطلب وي چې له زوړ نارینه او له زړې ښځې څخه تر نن ورځې پورې داسې یو هلک نه دی پیدا کړی شوی.

قَالَ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَٰمٌ وَكَانَتِ ٱمْرَأَتِي عَاقِرًا وَقَدْ بَلَغْتُ مِنَ ٱلْكِبَرِ عِتِيًّا ۝

وویل (زکریا) ای ربه ځما ! څرنګه به وي ما لره هلک، او ده ښځه ځما شنډه، او په تحقیق رسېدلی یم زه له ډېر زوړوالي نه ډېر ضعف ته.

تفسیر: د انسانانو دغه دستور او قاعده ده، کله چې کوم غیر متوقّع خبره یا فوق العاده زېری واوري؛ نو د زیات طمانیت او استلذاذ لپاره د هغه پوښتنه څو څو ځلې کوي، او له هرې خوا د هغه په پوښتنې او لازمي تپوسونو او ضروري فکرونو کې بوخت کیږي، او د دغه تحقیق او تفحص او تیقن څخه نوی نوی خوند اخلي، او ضمناً هغه خبره ښه پخه او مؤکده کوي، نو د زکریّا علیه السلام د دغه سؤال منشأ هم همدا ده.

قَالَ كَذٰلِكَ ۚ قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ وَّقَدْ خَلَقْتُكَ مِنْ قَبْلُ وَلَمْ تَكُ شَيْـًٔا ﴿۹﴾

وفرمایل (ملائک): همداسې دی، فرمایلي دي رب ستا چې دا کار پر ما اسان دی، او په تحقیق پیدا کړی مې یې ته پخوا له دې نه، او نه وې ته هیڅ څیز.

تفسیر: دا د تعجّب کومه خبره نه ده، په همدغسې حالاتو کې ته د هلک پلار کېدونکی یې، او دغه د الله تعالی مشیت هرومرو پوره کېدونکې دی.

﴿قَالَ رَبُّكَ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٌ﴾ الآیة ـ یعنې که ستا په نزد د ظاهري اسبابو په اعتبار یو شی مشکل او سخت وي؛ نو الله تعالی جلّ جلاله ته هغه او نور ګرد مشکل کارونه له سره سخت نه دي، نو د الله تعالی د عظیمه وو قدرتونو په مقابل کې هر شی آسان دی، انسان دې رومبی خپل وجود ته وګوري، چې دی پخپله په یوه زمانه کې هیڅ یو شی نه وو، تر دې حده پورې چې له سره د نامه او نښې خاوند هم نه وو، نو الله تعالی دی له کتمه د عدمه په وجود راوړ، نو بیا همدغه مطلق قادر چې یو محض لا شي څیز څخه شی جوړوي، آیا هم هغه لوی ذات د یوه زاړه نارینه او زړې شنډې ښځې څخه یو هلک نشي پیدا کولی؟ ! پر دغه فعل خو په اولی طریقه سره ښایي چې قدرت ولري.

قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْٓ اٰيَةً ۚ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ ثَلٰثَ لَيَالٍ سَوِيًّا ﴿۱۰﴾

وویل (زکریّا له ډېری خوشالی) ای ربه څما ! وګرځوه ماته یوه نښه، وفرمایل (الله) چې نښه ستا دا ده چې ته به خبرې نشې کولی له خلقو سره درې شپې (او ورځې پرله پسې) په دې حال چې روغ او جوړ به اوسې.

تفسیر: یعنې سره له صحته او روغوالي هر کله چې تا ونشوئ کولی چې له خلقو سره خبرې اترې وکړې؛ نو هلته وپوهېږه چې حمل قرار نیولی دی.

فَخَرَجَ عَلٰى قَوْمِهٖ مِنَ الْمِحْرَابِ فَاَوْحٰۤى اِلَيْهِمْ اَنْ سَبِّحُوْا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ﴿۱۱﴾

پس ووت (زکریّا) پر قوم خپل له خپل محراب (حجرې یا معبد) څخه پس اشاره یې وکړه دوی ته داسې چې تسبیح وایئ تاسې په صبا او بېګا کې.

تفسیر: یعنې کله چې هغه وخت ورسېد؛ نو د ده ژبه له خبرو او اترو څخه بنده شوه، نو له خپلې حجرې څخه د باندې ووت، او خلقو ته یې په اشاره سره وویل چې سبا او بېګا تاسې پاک الله یادوئ ! لمونځونه کوئ ! په تسبیح او تهلیل کې مشغول او لګیا اوسئ ! دغه وینا یا حسب المعمول به د پخوانیو مواعظو او نصائحو په شان وې، یا د الهیه د دغه نعمت د احساسه وروسته به یې غوښتې وي، چې نور خلق هم د ده د حال سره شریک شي، څکه چې پر زکریّا علیه السلام حکم شوی وو، لکه چې د آل عمران په سورت کې راغلي دي چې په دغو دریو ورځو کې په ښه شان سره الله تعالی یادوه ! او خاص د تسبیح لفظ به یې ښایي د دې لامله اختیار کړی وي؛ چې علی الأکثر د عجیبه وو او غریبه وو مظاهرو او مناظرو د لیدلو په وخت کې سړی ﴿سُبْحَانَ اللهِ﴾ وایي، (وفرمایل الله پس له تولّد د یحیی چې):

يَٰيَحْيَىٰ خُذِ ٱلْكِتَٰبَ بِقُوَّةٍ ۖ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْحُكْمَ صَبِيًّا ﴿١٢﴾

ای یحیی ! واخله دغه کتاب (تورات) په قوّت (د زړه سره)، او ورکړی وو مونږ دغه یحیی ته حکم (حکمت او نبوّت) په دغه حال کې چې دی هلك وو.

تفسیر: یعنی تورات او نورې آسماني صحیفې چې پر تا یا پر نورو انبیاوو نازلې کړی شوي دي؛ په ښه مضبوطه او کوښښ سره يې ټینګ کلك ونیسه !، او د هغو پر تعلیماتو هم ته په ښه شان سره عمل وکړه !، او هم يې پر نورو خلقو د هغو په تعمیل کې اقدامات وکړه !.

د ډېرو علماوو په نزد الله تعالی د خپل عمومي عادت په خلاف یحیی علیه السلام ته په همدغه هلکتوب کې نبوّت هم عطاء فرمایلی وو، والله أعلم.

وَحَنَانًا مِّن لَّدُنَّا وَزَكَوٰةً ۖ وَكَانَ تَقِيًّا ﴿١٣﴾ وَبَرًّۢا بِوَٰلِدَيْهِ وَلَمْ يَكُن جَبَّارًا عَصِيًّا ﴿١٤﴾

او (بل ورکړی وو مونږ یحیی لره رحمت مهرباني) چې مهربان وو له نزد خپله او پاکي (له معاصیو) او وو (یحیی) پرهېزګار. او نېکوکار پر مور او پلار خپل، او نه وو سرکښه نافرمانه (له ربه او پخپل سر).

وَسَلَٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ﴿١٥﴾

او سلامتیا دې وي پر دغه (یحیی له جانبه د الله) په هغه ورځ چې پیدا کړی شوی دی (له مسه د شیطانه) او په هغه ورځ چې مري به دی (له سکرات الموت او له عذاب القبر) او په هغه ورځ چې پورته کړ شي ژوندی (له عذاب د قیامت).

تفسیر: کوم سلام چې الله تعالی پر خپل بنده لیږي؛ هغه محض د تشریف او عزّت زیاتولو لپاره وي، چې د هغه مطلب او معنی دا ده، چې په ده باندې هیڅ انتقاد (نیونه) او مؤاخذه نشته، دلته د ﴿يَوْمَ وُلِدَ﴾ ﴿وَيَوْمَ يَمُوتُ﴾ ﴿وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا﴾ څخه د اوقاتو او احوالو د تعمیم غرض دی، یعنې د ولادت له وخته نیولې د موت تر وخته پورې، او له موته نیولې تر قیامته پورې په هیڅ وخت کې پر یحیی علیه السلام هیڅ قسم د الله تعالی مؤاخذه نشته، او تل تر تله له هره آفته مأمون او مصئون دی.

وَٱذْكُرْ فِى ٱلْكِتَٰبِ مَرْيَمَ إِذِ ٱنتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا ﴿١٦﴾

او یاد کړه په دغه کتاب کې (قصه د) مریمې کله چې په څنګ شوه (لاړه) له کورنۍ خپلې هغه ځای ته چې (د کور په) شرقي (ډډه کې) وو.

تفسیر: یعنې لمر ختلو طرف ته لاړه او هلته يې پرده وکړه چې په پوره خشوع او خضوع سره پکې د الله تعالی عبادت او بندګي وکړي، او دغه مشرقي طرف ته تلل اتفاقي وو، د کوم فضلیت له کبله نه وو، او د دې قصې یو هدف هم دا وو چې نصاراو ته د عیسی علیه السلام او د هغې د مور بندګي او عبدیت ثابت شي او د ألوهیت اعتقاد يې باطل ثابت کړي.

فَٱتَّخَذَتْ مِن دُونِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَآ إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ﴿١٧﴾

پس ونیوله له طرفه د دوی پرده (لپاره د عبادت او بندګۍ)، نو ولیږه مونږ دې ته روح خپل، پس شکل خپل يې جوړ کړ دې ته د سړي کامل.

تفسیر: یعنې جبرئیل علیه السلام د یوه ډېر ښکلي پیمخي ځلمي په صورت سره متشکل شوی ورسېد، هم هغسې چې د پرښتو عادت دی، چې عمومًا په ښو منظرو او صورتونو سره متمثل کیږي، او ممکن دی دلته د مریمې صدیقې رضي الله تعالی عنها د انتهایي عفّت او طهارت او تقوی امتحان اخیستل هم مقصود وي، چې داسې زورور دواعي او محرکات هم د دې د عفاف او تقوی جذباتو ته لږ څه حرکت هم ونشو ورکړی.

قَالَتۡ إِنِّيٓ أَعُوذُ بِٱلرَّحۡمَٰنِ مِنكَ إِن كُنتَ تَقِيّٗا ١٨

نو وویل (مریمې دغه ځلمي ته) بېشکه زه پناه غواړم په رحمان له تا نه که یې ته پرهېزګار سړی (نو له ما څخه په ډډه شه !).

تفسیر: صدیقې مریمې رضي الله تعالی عنها په اوله شبېه کې داسې وګڼله چې دغه کوم سړی دی، په تنهایي کې یو ناڅاپي د یوه سړي سره د مخامخ کېدلو څخه بالطبع بي بي مریمه سخته وویرېده، او د خپلې ساتنې او پت په فکر کې ولوېده، مګر معلومیږي چې د دغې پرښتې پر څېره د تقوی او طهارت د انوارو د ځلېدلو څخه فقط هم دغومره ویل کافي وګڼه چې: «زه ستا له طرفه رحمان ته پناه نیسم، که چېرې ستا په زړه کې د الله تعالی وېره وي».

قَالَ إِنَّمَآ أَنَا۠ رَسُولُ رَبِّكِ لِأَهَبَ لَكِ غُلَٰمٗا زَكِيّٗا ١٩

وویل (جبرئیل) بېشکه همدا خبره ده چې زه رالېږلی شوی د رب ستا یم، لپاره د دې چې وبخښم تاته (په امر د رب ستا) یو هلک صالح (پاک له معاصیو).

تفسیر: یعنې مه ویرېږه ! که څما په نسبت ستا په زړه کې کوم خراب خیال پیدا شوی وي؛ هغه لرې کړه ! زه انسان نه یم، بلکه ستا د هغه رب له جانبه لېږلې شوې پرښته یم، او د دې لپاره راغلی یم چې د پاک الله له طرفه تاته یو پاک، صاف، مبارک، مسعود او ښه پاک هلک درعطاء کړم، په ﴿غُلَٰمٗا زَكِيّٗا﴾ کې دې ته اشاره ده چې هغه به د حسب او نسب او اخلاق او نورو ممیزو صفاتو په اعتبار بیخي پاک او صاف وي.

قَالَتۡ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي غُلَٰمٞ وَلَمۡ يَمۡسَسۡنِي بَشَرٞ وَلَمۡ أَكُ بَغِيّٗا ٢٠

وویل (مریمې له ډېره تعجّبه) څرنګه به پیدا شي ما ته څوی حال دا چې نه دی رسېدلی ماته هیڅ بشر (نه په نکاح او نه بغیر د نکاح)، او نه ومه زه هیچېرې بدکاره.

تفسیر: د صدیقې مریمې رضي الله تعالی عنها په زړه کې الله دغه یقین ورپیدا کړ چې بېشکه دغه پرښته ده، مګر دغه تعجّب ورپیدا شو، هغه جینۍ چې له سره مېړه (خاوند) نه لري، چې په حلاله طریقه د ده سره یې مساس کړی شوی وي، او بدکاري یې هم نه ده کړې چې په حرامه طریقه سره به یې هلک حاصل کړی وي؛ نو دې ته د دغه رهبانیت په حالت کې پاکیزه ولد به څرنګه ورپه برخه کېدی شي؟ لکه چې زکریّا علیه السلام له دې نه په لږ عجیب بشارت باندې سوال کړی وو.

قَالَ كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ هُوَ عَلَيَّ هَيِّنٞ

نو وویل (جبرئیـل مریمې ته کار) همداسې دی (لکه چې ته وایې لیکن) فرمایلي دي رب ستا: دغه (کار) پر ما باندې آسان دی.

تفسیر: دا هم هغه جواب دی چې زکریا علیه السّلام ته ورکړی شوی وو، د همدې سورت په (۱) رکوع او همدې تفسیر کې دې بیا ولوستل شي.

وَلِنَجۡعَلَهُۥٓ ءَايَةٗ لِّلنَّاسِ وَرَحۡمَةٗ مِّنَّاۚ وَكَانَ أَمۡرٗا مَّقۡضِيّٗا ﴿٢١﴾

او چې وګرځوو مونږ دغه (هلك) علامه دليل (د كامل قدرت خپل) لپاره د خلقو او رحمت له (طرفه) ځمونږ، او دي (پيدا كېدل د ده بې له پلاره) يو كار مقرّر كړى شوى (له ازله).

تفسير: يعنې دغه تولّد هرومرو كېدونكى دى، او لا له پخوا څخه دغه حكم د واقع كېدلو پرې شوى دى، چې له سره په كې تخلّف نه واقع كيږي، او ځمونږ حكمت د دغې خبرې مقتضي دى چې بې د بشر د مسې محض د يوې جينى له وجوده هلك پيدا كړو، او هغه ليدونكو او اورېدونكو لپاره ځمونږ د عظيمه وو قدرتونو څخه يو لوى دليل دى، ځكه چې ګرد انسانان د نارينه وو او د ښځو له يو ځاى كېدلو څخه پيدا كيږي، آدم عليه السلام مو بې د دغو دواړو څخه پيدا كړى دى، او بي بي حوّاء رضي الله تعالى عنها مو يواځې د نارينه له وجوده پيدا كړې ده، څلورم صورت يې همدغه دى چې د مسيح عليه السلام په وجود كې ظاهر شو، چې بې د نارينه له وجوده يواځې د ښځې له وجوده موجود شي، او په دغه ترتيب سره د پيدايښت څلور واړه صورتونه واقع شول، نو د عيسى المسيح عليه السلام وجود د الهي قدرت يو دليل دى، او د الله تعالى له طرفه دنيا ته د لوى رحمت سامان دى.

فَحَمَلَتۡهُ فَٱنتَبَذَتۡ بِهِۦ مَكَانٗا قَصِيّٗا ﴿٢٢﴾

پس حامله شوه (مريمه) په دغه (عيسى) سره، نو په څنګ شوه سره له دغه (عيسى) يو ځاى لرې ته.

تفسير: وايي چې پرښتې وپو كل؛ نو هغه حامله شوه، او ظاهره د سياق نه او مستنده خبره دا ده چې پو كل الله تبارك وتعالى كړيدي، لكه چې وايي: ﴿فَنَفَخۡنَا﴾ او لكه څنګه چې د آدم عليه السلام په شان كې يې ويلي دي: ﴿وَنَفَخۡتُ فِيهِ مِن رُّوحِي﴾ والله أعلم.

يعنې څه مهال (وخت) چې د حمل د وضعې وخت ورنژدې شو، نو له ډېره شرمه او حياء له ګردو څخه جدا شوه، او كوم لرې ځاى ته لاړه، ښايي چې دغه ځاى به هم هغه وي، چې ورته «بيت لحم» وايي، دغه د «بيت المقدس» څخه اته ميله لرې دى، ذكره ابن كثير رحمه الله عن وهب رحمه الله.

فَأَجَآءَهَا ٱلۡمَخَاضُ إِلَىٰ جِذۡعِ ٱلنَّخۡلَةِ قَالَتۡ يَٰلَيۡتَنِي مِتُّ قَبۡلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسۡيٗا مَّنسِيّٗا ﴿٢٣﴾

پس راوسته مريمه درد د زېږولو وبېخ (تنې) د ونې د خرما ته (لپاره د تكيا، كله چې عيسى پيدا شو) وويل (مريمې له ډېرې حياء): كاشكې كه مړه وى زه پخوا له دې حاله او وى زه (اوس يو ځيز) هېر شوى بيخي له زړونو وتلى.

تفسير: يعنې د زېږولو د درد له شدّته د يوې زړې خرما ونې وبېخ ته چې په يوه اوچت ځاى كې ولاړه وه؛ پناه يې يوړه (او هلته پټه كېناسته)، په دغه وخت كې د درد له تكليفه اود جينى له ديني حيثيته د مستقبل د بدنامى او رُسوايى انديښنې په غلبه كې يو ناڅاپه داسې يوه جمله يې هم له خولې ووته: ﴿يَٰلَيۡتَنِي مِتُّ قَبۡلَ هَٰذَا وَكُنتُ نَسۡيٗا مَّنسِيّٗا﴾ كاشكې زه له دې شيبې څخه لا له پخوا مړه شوې وى، او په دنيا كې ځما نوم او نښان نه وى پاتې، څو په هېره سره هم د چا پر ژبه ځما نوم نه راتلى، د اضطراب، كرب او انديښنې له شدّته هغه زېرى چې د پرښتې له خوا دې ته وركړى شوى وو؛ ترې بيخي هېر شوى وو.

فَنَادٰىهَا مِنْ تَحْتِهَآ اَلَّا تَحْزَنِىْ قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا ﴿۲۴﴾ وَهُزِّىٓ اِلَيْكِ بِجِذْعِ النَّخْلَةِ تُسٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴿۲۵﴾

پس غږ وکړ (پرښتي) دغې (مریمې) ته له لاندې طرفه د دې چې مه خپه کېږه، په تحقیق گرځولې ده رب ستا لاندې (له قدمونو) ستا چینه (یا سردار چې عیسی دی). او وخوځوه (وښوروه) خپل ځان ته ببخ د خرما چې راتوی کاندې پر تا خرما پخې لوندې تازه.

تفسیر: ځینو اسلافو (دغه منادی عیسی علیه السلام بللی، او له تحت څخه د مریمې صدیقې نس یې مراد کړی دی)، د «سري» معنی یې په چینه سره کړې ده، ظاهر دی چې دغه چینه د خرق العادات په صورت بهولې شوې ده، او خرما هم بې موسمه په وچې ونې لگېدلې ده، د دغو خوارقو د لیدلو د بي بي مریمې رضي الله تعالی عنها په زړه کې تسکین او اطمینان پیدا شو، او د تفریح او خوښی اسباب ورمهیأ شول، او لکه چې مفسرین لیکي: په دغه حالت کې دغه شیان بي بي مریمې رضي الله تعالی عنها ته نافع او مفید هم وو، او دې ورته ضرورت هم درلود، نو ځکه د الله په حکم په همدغه اکل او شرب سره بېرته روغه جوړه شوه.

فَكُلِىْ وَاشْرَبِىْ وَقَرِّىْ عَيْنًا ۚ فَاِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ اَحَدًا ۙ فَقُوْلِىْٓ اِنِّىْ نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا فَلَنْ اُكَلِّمَ الْيَوْمَ اِنْسِيًّا ﴿۲۶﴾

پس خوره (دا خرما) او څښه (دا اوبه)، او یخې کړه سترگې خپلې (په عیسی او خوشحاله شه)، پس که ولید تا له خلقو څخه یو څوک (چې د عیسی د تولّد پوښتنه یې در څخه کوله)؛ نو ووایه: بېشکه زه چې یم نذر کړې مې ده پر ځان رحمان ذات (الله تعالی) ته روژه (له کلامه)، پس له سره به خبرې ونه کړم زه نن ورځ له هیڅ یو انسان سره !.

تفسیر: یعنې که له خلقو څخه کوم سړی له تا څخه (د عیسی علیه السلام د ځېږېدلو په نسبت) څه پوښتنه وکړه؛ نو ته په اشارو سره هغوی داسې وپوهوه چې نن ورځ ما محضاً الله له ویلو څخه خپله خوله بنده کړې ده، او له تاسې سره نن هیڅ خبرې اترې نشم کولی، د دوی په دین کې دغسې نیت درست وو، او دوی به د نه ویلو روژې هم نیولې، خو څمونږ د محمدیانو په شریعت کې داسې د کلام روژه نیول درست نه دي، او دا ووایه: بېشکه زه چې یم نذر مې منلی دی، مطلب دا دی چې «د نذري روژې نیت وکړه او بیا داسې ووایه»، او د ﴿اِنْسِيًّا﴾ قید یې ښایي ځکه لگولی وي چې (تسبیح او تهلیل او د الله شکر خو کوم) له پرښتو سره خو غږېږم.

فَاَتَتْ بِهٖ قَوْمَهَا تَحْمِلُهٗ ۗ قَالُوْا يٰمَرْيَمُ لَقَدْ جِئْتِ شَيْئًا فَرِيًّا ﴿۲۷﴾

پس راغله (مریمه) سره له دغه (عیسی) قوم خپل ته چې اخیستی یې وه هغه (عیسی په غېږ کې، کله چې قوم یې ولیده؛) نو وویل (یهودانو): ای مریمې په تحقیق راوړی دی (او کړی دی) تا یو څیز عجیبه مخالف له عادته.

تفسیر: یعنی عیسی علیه السلام یې پخپلې غېږ کې ونیو، او د خپل قوم په مخ کې راغله، نو گرد خلق د دغه وضعیت د لیدلو څخه هک پک، حیران او متحیر پاتې شول، او گردو په داسې ویناوو خوله وپرانستله، ای مریمې ! تا بلا وکړله، او داسې غټه خبره دې پیدا کړه، نو ژر شه ووایه چې دغه ساختگي شی دې له کومه راوړ، له دې نه به لوی دروغ او خلاف العادت خبره څه وي چې یوه پېغله بې مېړه جینۍ داسې دعوی وکړي چې د ما کره ځوی شوی دی (بې له پلاره).

يَٰٓأُخْتَ هَٰرُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ ٱمْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا ﴿٢٨﴾

ای خورې د هارون ! نه وو پلار ستا سړی د بدۍ، او نه وه مور ستا بد عمله (نو دا ته ولې داسې شوې؟).

تفسير: يعنې پرې بد ګمانه شول، او داسې يې ورته وويل چې: ستا مور او پلار او کورنۍ له قديم الأيامه تر اوسه پورې په عفّت او عصمت او طهارت معروف دي، نو په تا کې دغه بد خصلت له کومه شو؟ د نېکانو له اولاده وو څخه د بدۍ صدور د حيرت او تعجّب وړ (لايق) وي.

تنبيه: بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها ته يې «أخت هارون» ځکه وويل؛ چې د موسى د ورور هارون عليه السلام له نسله وه، ګواکې له «أخت هارون» څخه «أخت قوم هارون» مقصود دی، لکه چې ﴿وَٱذْكُرْ أَخَا عَادٍ﴾ کې يې هود عليه السلام ته د «د عاد» ورور ويلی دی، حال دا چې «عاد» د دې قوم د اصلي مورّث نوم وو، او ممکن دی د «أخت هارون» څخه د هغه ظاهري معنى مراد يې واخيسته شي، لکه چې له ځينو صحيحه وو أحاديثو څخه ظاهرېږي، چې د بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها دغه ورور يو صالح سړی وو.

فَأَشَارَتْ إِلَيْهِ

نو اشاره وکړه (مريمې) هغه ته (چې له دغه عيسى سره وغږېږئ !).

تفسير: يعنې صديقې مريمې رضي الله تعالى عنها پخپل لاس سره د خپل وړوکي په لوري (چې تی يې په خوله کې وو، او د خلقو دغه ګردې خبرې يې په ځير سره اورېدې) اشاره وکړه چې تاسې پخپله له ده نه پوښتنه وکړئ !.

قَالُوا۟ كَيْفَ نُكَلِّمُ مَن كَانَ فِى ٱلْمَهْدِ صَبِيًّا ﴿٢٩﴾

نو وويل (خلقو) څرنګه به خبرې وکړو مونږ له هغه چا سره چې دی هغه په مهد (ځانګو يا غېږ) کې وړوکی (تی رودونکی).

تفسير: يعنې سره له دغسې شرمناکه حرکته دې ته لا ګوره چې پر مونږ ملنډې هم وهي، او مسخرې راپورې کوي، چې دغه خپل ځواب د دغه تی رودونکي ماشوم څخه واورئ ! ښه نو د يوه داسې نوي ځېږېدلي هلک سره به مونږ څرنګه سوال او ځواب وکړی شو؟.

تنبيه: ﴿مَن كَانَ فِى ٱلْمَهْدِ صَبِيًّا﴾ کې د ﴿كَانَ﴾ لفظ پر دې دلالت نه کوي چې عيسى عليه السلام د خپل دغه تکلّم په وخت کې «صبي» نه وو پاتې، په قرآن عظيم کې داسې مضامين ډېر استعمال شوي دي، مثلا په ﴿وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا﴾ يا ﴿وَلَا تَقْرَبُوا۟ ٱلزِّنَىٰٓ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ فَٰحِشَةً﴾ يا ﴿إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِمَن كَانَ لَهُۥ قَلْبٌ أَوْ أَلْقَى ٱلسَّمْعَ وَهُوَ شَهِيدٌ﴾ او نورو کې د ﴿كَانَ﴾ استعمال د داسې مضمون لپاره شوی دی چې د هغه سلسله د ماضي زمانې د سلسلې د پرې کېدلو سره نه وي منقطع شوې.

قَالَ إِنِّى عَبْدُ ٱللَّهِ ءَاتَىٰنِىَ ٱلْكِتَٰبَ وَجَعَلَنِى نَبِيًّا ﴿٣٠﴾

وويل (عيسى) چې بېشکه زه بنده د الله يم، راکړی يې دی ماته کتاب، او ګرځولی يم زه الله نبي.

تفسير: يعنې د قوم په منځ کې همدغه خبرې او اترې کېدې چې الله تعالى مسيح عليه السلام په خبرو راوست، او د عيسى عليه السلام هغه وينا چې په دغه وخت کې يې وکړه، د دغو د هغه تردّد او د غلطو او فاسدو خيالاتو ترديد يې

وکړ، چې اوس یا وروسته له دې نه د ده په نسبت قائم کېدونکي وو، «زه بنده د الله یم»، یعنې نه پخپله الله تعالی او نه د الله تعالی ځوی یم، لکه چې د نصاراوو عقیده ده، لکه چې د همدې عقیدې د ترید لپاره یې ړومبی د مسیح علیه السلام د ولادت او نورو حالاتو مفصلا بیان وفرمایه.

وَّجَعَلَنِىۡ مُبٰرَكًا اَيۡنَ مَا كُنۡتُ وَاَوۡصٰنِىۡ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ مَا دُمۡتُ حَيًّا ۝

او ګرځولی یم زه (الله) برکتناک په هر ځای کې چې اوسېږم، او تأکیدي حکم یې فرمایلی دی ماته په لمانځه سره، او په زکات سره تر څو چې زه یم ژوندی.

تفسیر: یعنې تر څو چې ژوندی یم، د هر وخت او هر ځای سره مناسب د هر قسم صلات او زکات حکم چې شوی دی؛ د هغو د شرطونو او حقوقو د رعایت سره یې برابر تل اداء کوم، لکه چې په بل ځای کې د مؤمنیو په نسبت فرمایل دي: ﴿الَّذِيۡنَ هُمۡ عَلٰى صَلَاتِهِمۡ دَآئِمُوۡنَ﴾ د دې مطلب داسې نه دی چې په هر آن او هر وخت کې تل لمونځ به کوي، بلکه مراد یې دا دی چې په هر وخت او په هر قسم چې د لمانځه حکم شوی دی؛ تل په مداومت سره د هغه حکم تعمیل کوي.

وَّبَرًّۢا بِوَالِدَتِىۡ وَلَمۡ يَجۡعَلۡنِىۡ جَبَّارًا شَقِيًّا ۝

او (ګرځولی یم زه الله) نېکي کوونکی له مور خپلې سره، او نه یې ګرزولی یم زه سرکښه بدبخته.

تفسیر: هر کله چې هیڅوک یې پلار نه وو، نو یوائې د مور نوم یې واخیست، دغه ګردې جملې چې د ماضي په صیغو سره راوړې شوي دي؛ بېشکه د هغوی معاني په ماضي سره اخیستلی کېږي، لیکن داسې چې متیقن الوقوع مستقبل یې ماضي فرض کړی دی، لکه چې په ﴿اَتٰٓى اَمۡرُ اللّٰهِ فَلَا تَسۡتَعۡجِلُوۡهُ﴾ کې، هم داسې مسیح علیه السلام په خپل هلکتوب کې د ماضي د صیغو په استعمالولو کې تنبیه ورکړه، چې د دغو ګردو شیانو لیدل کېدل په مستقبل کې داسې یقیني او قطعي دي، لکه چې واقع شوي دي، مسیح علیه السلام د دغه خارق العادت خبرو اترو، او له هغو اوصافو اوخصائلو چې بیان کړل شو؛ په ډېر بلاغت سره د هغه ناپاک تهمت تردید وشو؛ چې د ده پر ماجده مور لګولی شوی وو، اول خو د داسې ووړکي وینا او داسې جامع او مؤثر کلام طبعًا د دښمنانو چپ کوونکی وو، بیا په داسې یو ووړکي کې چې دومره سوچه خصال وموندل شي؛ نو ښکاره ده چې هغه (العیاذ بالله) څرنګه ولد الزناء کېدی شي، لکه پخپله د دوی له دې اقرار څخه هم ظاهرېږي: ﴿وَّمَا كَانَتۡ اُمُّكِ بَغِيًّا﴾ چې دوی فروع هم د اصوله سره سم غوښتل.

وَالسَّلٰمُ عَلَىَّ يَوۡمَ وُلِدْتُّ وَيَوۡمَ اَمُوۡتُ وَيَوۡمَ اُبۡعَثُ حَيًّا ۝

او (وویل عیسی) سلام دی پر ما په هغه ورځ چې ځېږولی شوی یم (له مسه د شیطانه او نورو بدیو او خرافاتو) او په هغه ورځ چې مرم به (له عذابه د نزعې او د قبره)، او په هغه ورځ چې پورته به کړی شم ژوندی (له عذابه د قیامت).

ذٰلِكَ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ ۚ قَوۡلَ الۡحَـقِّ الَّذِىۡ فِيۡهِ يَمۡتَرُوۡنَ ۝

دغه (موصوف) عیسی ځوی د مریمې دی، (فرمایلي دي الله په شان د عیسی کې) خبره حقه رښتیا هغه چې په دې کې سره جګړې کوي (خلق).

تفسیر: یعنې د مسیح علیه السلام شان او صفت همدغه دی چې پاس بیان شو، په یوه رښتیا او ښکاره خبره کې خلقو چټي (فضول) جګړې او مناقشې پیدا کړي دي، چې یو ترې الله جوړوي، بل یې د الله تعالی ځوی ګڼي، بل یې کذّاب

او مفتري بولي، بل د ده پر نسب او نورو طعنې وهي، رښتيا خبره خو همدغه ده چې ښکاره کړی شوه چې مسيح عليه السلام الله نه دی، بلکه د الله تعالى يو مقرّب بنده دی، کاذب او مفتري نه دی، بلکه يو رښتين نبي دی.

مَا كَانَ لِلّٰهِ اَنۡ يَّتَّخِذَ مِنۡ وَّلَدٍ سُبۡحٰنَهٗ ؕ اِذَا قَضٰۤى اَمۡرًا فَاِنَّمَا يَقُوۡلُ لَهٗ كُنۡ فَيَكُوۡنُ ؕ﴿۳۵﴾

نه ښايېږي الله ته چې ونيسي ولد، پاکي ده ده ته (له نيولو د ولد)، هر کله چې حکم وکړي دې د يوه کار؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې وايي هغه ته (موجود) شه پس هغه موجود شي.

تفسير: هغه ذات ته چې د ده د يوه (کن ـ شه !) څخه هر شی موجودېږي؛ د ځوی او لمسي څه ضرورت دی؟ آيا (العياذ بالله) اولاد به د ضعف په وخت کې ورسره کومک او مرسته کوي؟ يا د مشکلاتو په وخت کې به يې لاس سپکوي؟ يا وروسته له هغه به د ده نوم ژوندی ساتي؟ او که داسې کومه شبهه درپيدا شوي وي، چې عموماً انسانان له مور او پلاره پيدا کيږي نو د مسيح عليه السلام پلار ځوک دی؟؛ نو د هغه ځواب همدغه د ﴿كُنۡ فَيَكُوۡنُ﴾ په جمله کې راغی، يعنې داسې مطلق قادر ته دغه څه اشکال لري چې يو هلك بې له پلاره پيدا کړي؟ که نصرانيان الله تعالى د مسيح عليه السلام پلار او صديقه مريمه د ده مور گڼي؛ نو العياذ بالله د مېړه (خاوند) او د ښځې د نورو تعلقاتو اقرار به هم کوي؟ سره له دې چې پلار يې ودروي، نو د تخليق طريقه خو به هم هغسې نه وي چې بالعموم په والدينو کې ده، نو بيا په بې پلاره پيدا کولو کې به څه اشکال وي؟.

وَاِنَّ اللّٰهَ رَبِّىۡ وَرَبُّكُمۡ فَاعۡبُدُوۡهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسۡتَقِيۡمٌ ﴿۳۶﴾ فَاخۡتَلَفَ الۡاَحۡزَابُ مِنۡۢ بَيۡنِهِمۡ ۚ فَوَيۡلٌ لِّلَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا مِنۡ مَّشۡهَدِ يَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ﴿۳۷﴾

او (ووېل عيسى) بېشکه الله رب ځما دی او رب ستاسې دی، پس عبادت وکړئ تاسې د الله، هم دغه لاره ده سمه صافه برابره. نو بيا اختلاف وکړ ډلو (د نصاراوو په باب د عيسى کې) له منځ د دغو (خلقو)، نو خرابي ده لپاره د هغو کسانو چې کافران (منکران) شوي دي له حاضرېدو (راتلو) د هغې ورځې ډېرې لويې (د قيامت نه).

تفسير: دغه د چا خبره ده؟ د ځينو په نزد دا د مسيح عليه السلام مقوله ده، گواکې پخوا له دې نه د مسيح هم هغه خبرې چې له ﴿قَالَ اِنِّىۡ عَبۡدُ اللّٰهِ﴾ الآية ـ څخه نقل کړی شوي دي، دا د هغه تکمله شوه، په منځ کې د مخاطبينو د تنبيه لپاره له ﴿ذٰلِكَ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ﴾ څخه د الله تعالى کلام وو.

ځما په نزد بهتر دا دی چې دغه د ﴿وَاذۡكُرۡ فِى الۡكِتٰبِ مَرۡيَمَ﴾ الآية ـ سره ولگولی شي، يعنې (ای محمده صلى الله عليه وسلم !) په کتاب کې د مريمې او د مسيح عليه السلام د حال هغه مذکور چې شوی دی؛ وايې وره ! او ووايه چې ځما او ستاسې رب الله دی، يواځې د همدغه عبادت وکړئ ! ځوی او لمسی ورته مه دروئ ! الله تعالى د توحيد داسې سمه صافه لاره درښوولې ده چې هيڅ لوړه، ژوره او کوږوالی نه لري، او گردو انبياوو هم د هم هغه په طرف لار ښوونه کړې ده، ليکن خلقو ډېرې فرقې جوړې کړي دي، او بېلې بېلې لارې يې ايستلې دي، نو هغه کسان چې له توحيد څخه انکار کوي؛ نو هغوی ته د ډېرې هولناکې ورځې (قيامت) له تباهۍ څخه خبردار کېدل په کار دي، چې خامخا راتلونکې ده.

اَسۡمِعۡ بِهِمۡ وَاَبۡصِرۡ ۙ يَوۡمَ يَاۡتُوۡنَنَا لٰـكِنِ الظّٰلِمُوۡنَ الۡيَوۡمَ فِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍ ﴿۳۸﴾

څه ډېر ښه اورېدونکي به وي دوی اوڅه ډېر ښه ليدونکي به وي دوی په هغې ورځې کې چې رابه شي دوی مونږ ته، ليکن ظالمان نن ورځ په گمراهۍ ښکاره کې دي.

تفسیر: یعنې نن چې اورېدل او لیدل مفید دي؛ دوی بیخي کاڼه او ړانده شوي دي، او د قیامت په ورځ چې لیدل او اورېدل له سره فائده نه رسوي؛ د دوی سترګې او غوږونه خلاصیږي، او په دغې ورځې کې به داسې خبرې اوري چې زړونه یې ترې پړق چوي، او داسې مناظر او نندارې به ګوري چې د هغو د لیدلو څخه به د دوی څېرې تکې تورې الوځي (نعوذ بالله منه !).

وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْحَسْرَةِ إِذْ قُضِيَ الْأَمْرُ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٩﴾

او وویروه ته دوی له ورځې د حسرت (او ارمانه) کله چې فیصله کړی شي کار (د حساب او کتاب)، حال دا چې دوی (په دنیوي) غفلت کې دي، او دوی ایمان نه راوړي.

تفسیر: کفّارو ته به د افسوس او ارمان کولو ډېرې مواقع وردمخه کیږي، او آخري موقع به هم هغه وي کله چې مرګ د یو ګلېي پشان راوستی شي، او د جنت او د دوزخ په منځ کې د ګردو په مخ کې په داسې حال کې چې ګرد به ورته ګوري؛ ذبح کاوه شي، او داسې یو غږ به کیږي چې: «جنتي دې په جنت کې او دوزخي دې په دوزخ کې د تل لپاره پاتې وي، وروسته له دې نه به مرګ هیچا ته نه راځي»، نو په دغه وخت کې کافران بالکل نااميده کیږي، او د حسرت لاسونه به سره منبي او ګوتې به چیچي.

﴿وَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ﴾ یعنې په دغه وخت کې دوی د داسې ورځې په راتګ باور نه کوي، خو څه مهال (وخت) چې د قیامت له لویو مصائبو سره مخامخ کیږي؛ نو دلته به وایي چې: کاشکې هلته مو سترګې خلاصې کړې وی، او پخپلو نفعو او زیانونو پوهېدلي وی، مګر د دغې ورځې حسرت او افسوس دوی ته هیڅ په درد نه خوري.

إِنَّا نَحْنُ نَرِثُ الْأَرْضَ وَمَنْ عَلَيْهَا وَإِلَيْنَا يُرْجَعُونَ ﴿٤٠﴾

بېشکه مونږ چې یو همدا مونږ وارث کیږو د ځمکې او د هغه چا چې پر دغه ځمکې دي، او خاص مونږ ته به راوستی شي دوی (لپاره د جزا).

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ ۚ

او یاد کړه (ای محمده ! امت خپل ته) په کتاب (قرآن) کې (قصه د) ابراهیم.

تفسیر: د مکې مکرّمې مشرکانو داسې دعوی کوله، چې دوی د ابراهیم علیه السلام له اولادې او د هم هغه پر دین قائم دي، نو دا یې هغوی ته وروښوول چې ستاسې د پلار ابراهیم علیه السلام رویه د بتانو په نسبت څه ډول وه؟ که د آباؤو او اجدادو تقلید کوئ؛ نو د داسې یو پلار تقلید وکړئ ! او له مشرکو پلرونو او نیکه ګانو نه هم هغسې مرور او بېزاره شئ؛ لکه چې ابراهیم علیه السلام ترې بېزاره شوی وو.

إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٤١﴾

بېشکه دغه (ابراهیم) وو صدّیق (ډېر رښتینی) نبي.

تفسیر: د «صدّیق» معنی دا ده چې ډېر زیات رښتیا ویونکی چې پر خپلو خبرو د عمل کولو له پلوه بیخي رښتین ثابت او د خپل قول او عمل توافق په رښتیا سره ګردو ته ښیي، یا خو «صدیق» هغه رښتین او پاک طینت سړي ته وایي چې د ده په زړه کې د رښتیا قبلولو لپاره نهایت اعلی اکمل استعداد موجود وي، هر هغه خبره چې د الله تعالی له جانبه ور ورسیږي؛ هغه بلا توقفه د ده په زړه کې ځای ونیسي، او بیخي د شک او تردّد ځای او ګنجایش په کې پاتې نه شي،

ابراهیم علیه السلام په هرې يوې معنی سره «صدّيق» وو، او کله چې د «صدّيقيت» لپاره «نبوّت» نه دی لازم؛ نو ځکه يې وروسته د «صدّيقًا» سره «نبيًّا» هم وفرمايل، او پر نبوّت يې هم تصريح وکړه، له همدې ځايه معلوم شو چې د کذبات ثلاثه حديث او په «نحن أحق بالشک من إبراهيم» او نورو رواياتو کې د کذب او شک هغه معنی نه ده مراده، چې د کلام له ظاهر څخه مفهوميږي.

إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَٰٓأَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنكَ شَيْـًٔا ﴿٤٢﴾

کله چې وويل (ابراهيم) پلار خپل: ته ای پلاره ! ولی عبادت کوې ته د هغه څيز چې نه اوري او نهويني او نه دفع کولی شي له تا نه هيڅ څيز؟.

تفسير: يعنې هغه چې ګوري او اوري او په مشکلاتو کې هم پکار راځي، مګر واجب الوجود نه وي؛ د هغه عبادت هم نه دی جائز، څه جواز د دې چې د يوې بې ځانه تيږې (ګټې) يا بې روحه بت چې نه ليدی شي او نه اورېدی شي او نه ځمونږ څه پکار راځي او پخپله ځمونږ په لاسونو جوړ شوی او توړلی شوی دی؛ هغه معبود ودروو؟ نو دغه عمل د هيڅ يو عاقل او پوه سړي کار له سره نشي کېدی.

يَٰٓأَبَتِ إِنِّي قَدْ جَآءَنِي مِنَ ٱلْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَٱتَّبِعْنِيٓ أَهْدِكَ صِرَٰطًا سَوِيًّا ﴿٤٣﴾

ای پلاره ځما ! بېشکه زه چې يم په تحقيق راغلی دی ماته له علمه هغه قدر چې نه دی راغلی تاته، نو متابعت وکړه ځما؛ چې وبه ښيم تاته لاره سمه برابره.

تفسير: يعنې الله تعالی ماته د توحيد او د معاد او د نورو صحيح علم راکړی دی، او د شريعت له حقائقو څخه يې واقف کړی يم، که ته ځما متابعت وکړې؛ نو زه به دې پر داسې سمې صافې لارې بيايم؛ چې د الله تعالی تر رضاء پورې رسيږي.

يَٰٓأَبَتِ لَا تَعْبُدِ ٱلشَّيْطَٰنَ ۖ إِنَّ ٱلشَّيْطَٰنَ كَانَ لِلرَّحْمَٰنِ عَصِيًّا ﴿٤٤﴾

ای پلاره ځما ! مه کوه عبادت د شيطان (په ارتکاب د منهياتو) ! بېشکه شيطان دی له رحمان څخه ډېر نافرمانه (سرکښه).

تفسير: د بُتانو عبادت په شيطاني اغواء او لمسون کيږي، او شيطان د دغه حرکت له ليدلو څخه ډېر زيات خوشاليږي، نو په دې لحاظ ګواکي د بُتانو عبادت د شيطان عبادت دی، او د شيطان عبادت ګواکې د «رحمان» څخه انتهايي نافرماني ده، ښايي د ﴿عَصِيًّا﴾ په لفظ سره يې دې لوري ته هم توجه ورکړي وي، چې د شيطان د ړومبنی نافرمانی اظهار په هغه وخت کې شوی دی چې ستاسې د پلار آدم عليه السلام په مقابل کې د تعظيمي سجدې حکم ورکړی شوی وو، لهذا د آدم عليه السلام اولادې ته د ډېر شرم او ننګ ځای دی چې د «رحمان» څخه مخ واړوي، او له شيطان سره خپله يارانه ونښلوي، يا هغه قديمي ازلي دښمن خپل معبود وګرځوي.

يَٰٓأَبَتِ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِّنَ ٱلرَّحْمَٰنِ فَتَكُونَ لِلشَّيْطَٰنِ وَلِيًّا ﴿٤٥﴾

ای پلاره ځما ! بېشکه زه چې يم ويرېږم له دې نه چې وبه رسيږي تاته عذاب له «رحمان» څخه (لامله د متابعت د شيطان)، پس شې به ته شيطان ته دوست (ملګری په دوزخ کې).

تفسير: يعنې د «رحمان» د عظيمو رحمتونو اقتضاء دا ده چې پر ګردو بندګانو يې شفقت اومهرباني وي، ليکن ستا د بدو اعمالو له شامته ويره ده، چې همدغه حليم رحيم او کريم الله تعالی هم په قهر نشي، او پر تاسې کوم سخت آفت

نازل نه کړي، چې په هغه کې د اخته کېدلو لامله به تل تر تله د شیطان رفیق او ملګری شي، یعنې د کفر او شرک له مزاولته به په مستقبل کې د ایمان او توبې توفیق درپه برخه نشي، او د اولیاء الشیاطین په ډله کې به شامل شې، او په دائمي عذاب کې به وغورځاوه شې، عمومًا مفسرینو دغه معنی اخیستې ده، لیکن شاه صاحب لیکي: «یعنې د کفر له وباله که کوم آفت راشي؛ نو له شیطانه به مدد غواړې، یعنې له بتانو څخه، اکثر خلق په همدغسې وخت کې شرک کوي»، والله أعلم.

قَالَ أَرَاغِبٌ أَنتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا ﴿٤٦﴾

وویل (آزر پلار د ابراهیم) آیا مخ ګرځوونکی یې ته له (عبادت د) معبودانو ځما ای ابراهیمه؟ که منع نشوې ته (له دې کاره) نو خامخا وبه ولم هرومرو تا (سنګسار به دی کړم) په تیږو (ګټو) (یا په بدو خبرو) سره، او ترک مې کړه (او لرې شه له مانه) ډېر مدّت (چې ضرر مې در ونه رسیږي).

تفسیر: د ابراهیم علیه السلام پلار (آزر) د خپل ځوی د دغه تقریر له اورېدلو څخه وروسته ده ته وویل: «معلومیږي چې ته ځمونږ له معبودانو څخه بد عقیده یې، بس دی دا خپل وعظ او نصیحت او بد اعتقاد پرېږده، که نه ته به بله کومه سخته خبره له ما څخه واورې، بلکه ځما په لاس به سنګساریږې، که خپل خیر غواړې؛ نو له ما څخه تر یوه مدّت لرې شه ! چې زه نه غواړم چې ستا رنګ وګورم، او پخوا له دې نه چې زه پر تا لاس پورته کړم؛ ته له دې ځایه لرې شه !».

قَالَ سَلَامٌ عَلَيْكَ سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي إِنَّهُ كَانَ بِي حَفِيًّا ﴿٤٧﴾

وویل (ابراهیم) سلام (د متارکې د خبرو) دې وي په تا باندې، ژر به مغفرت غواړم تاته له رب خپل نه (څو مسلمان شې)، بېشکه چې الله دی پر ما ډېر مهربان.

تفسیر: دغه د رخصت یا د متارکت سلام دی، لکه چې ځمونږ په محاوراتو هم په داسې مواقعو کې داسې ویلی کیږي، چې که هغه خبره یا کار داسې وشي؛ نو ځما درته سلام دی، لکه چې په (۲۰ جزء د القصص سورت په (۵۵) آیت (۶) رکوع) کې هم داسې یو آیت لولو: ﴿وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ أَعْرَضُوا عَنْهُ وَقَالُوا لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِي الْجَاهِلِينَ﴾.

شاه صاحب رحمه الله لیکي: «معلوم شو که په دیني خبره مور او پلار خپه شي، او خپل ځوی له کوره وباسي، او ځوی په خوږه ژبه او مؤدبه وینا ترې بیلتون اختیار کړي؛ نو دغسې هلک نه عاق کیږي».

﴿سَأَسْتَغْفِرُ لَكَ رَبِّي﴾ الآية ـ امید شته چې پاک الله پخپلې مهربانۍ به ځما د پلار ګناه معافوي، ابراهیم علیه السلام د استغفار وعده ابتداءً فرمایلې وه، کله چې د استغفار په وخت کې څه مهال (وخت) چې د الله تعالی مرضي ورمعلومه شوه؛ نو استغفار یې موقوف کړ، دغه بحث د توبې (براءة) په سورت په (۱۱۳) آیت (۱۴) رکوع کې د دې آیت په فائده کې تېر شوی دی: ﴿مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ﴾ هلته دې د دې تفسیر کې ولوستل شي.

وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَأَدْعُو رَبِّي عَسَىٰ أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا ﴿٤٨﴾

او په څنګ به شم له تاسې (ټولو بت پرستانو) او له هغه څه چې تاسې یې عبادت کوئ غیر له الله، او عبادت به کوم (یوائې) د رب خپل، امید لرم د دې چې نشم زه په عبادت د رب خپل کې بدبخته (نا امیده لکه چې تاسې شوي یئ).

تفسیر: کله چې ځما د پند او نصیحت هیڅ اثر پر تاسې نه لویږي، بلکه بالعکس ځما ویرولو او ډارولو ته هڅه هم کیږي؛ نو اوس زه پخپله ستاسې په دغه کلي کې نه پاتې کېږم، او تاسې سره له ستاسې باطلو معبودانو پرېږدم، او له دې

وطنه هجرت کوم، څو له تاسو څخه ګوښې (بېل) کېنم، او د زړه په اطمینان سره د الله واحد عبادت وکړی شم، د الله تعالی له فضله او کرمه کامل امید شته، چې زه د ده بندګي وکړی شم، او په کې محروم او ناکامه پاتې نشم، کله چې په غربت او بېکسی کې هم د ده عبادت وکړم، او د الله تعالی لوی دربار ته دعاء وکړم؛ ضرور یې مستجابوي، ځما الله سمیع بصیر او علیم دی، او ستاسې د تیرو (ګټو) او لرګیو باطل معبودان داسې دي، چې هومره نارې ورته ووهئ، او ورته وژاړئ، خو بیا هم ستاسې دعاوې نه اوري، او په درد مو نه خوري.

﴿فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا﴾ ۴۹

کله چې په څنګ شو (ابراهیم) له دوی په هجرت سره او له هغه څیزه (چې دوی یې) عبادت کولو غیر له الله نه؛ نو وبخښل مونږ ده ته (ځوی) اسحاق او (لمسی) یعقوب، او هر یو (له دوی دواړو) ګرځولی وو مونږ نبي.

تفسیر: یعنې د الله تعالی په لاره کې یې هجرت وکړ، او له خپلو اقاربو او خپلوانو څخه لرې ولوېد، الله تعالی ده ته له وطنه زیات شیان ورعطاء کړل، چې د غریب الوطنی وحشت ترې لرې شي، او هلته انس او سکون حاصل کړي، ښایي دلته د اسماعیل علیه السلام ذکر ځکه نه وي فرمایلی چې هغه له ده سره نه وو، بلکه دی یې په وړوکتوب له خپله ځان نه بېل کړی وو، او هم د هغه تذکره مستقلا راتلونکې ده.

﴿وَوَهَبْنَا لَهُم مِّن رَّحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا﴾ ۵۰

او بخښلي وو مونږ دوی (درې واړو) ته له رحمته خپل (نبوّت او حکمت) او ګرځولې وه مونږ دوی ته (یعنې ابراهیم او ځامنو ته یې) ژبه د صدق رښتینې ډېره پورته مشهوره.

تفسیر: یعنې الله تعالی له خپل خاص رحمت څخه خلیل الله علیه السلام او د ده کورنی ته د نبوّت او حکمت لویه برخه عنایت کړه، او په دنیا کې یې د ده خبره پورته کړه، او د تل لپاره یې د ده د خیر ذکر جاري کړ، لکه چې په ګردو مذاهبو او مللو کې د ده تعظیم او توصیف کېږي.

﴿وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مُوسَىٰ ۚ إِنَّهُ كَانَ مُخْلَصًا وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا﴾ ۵۱

او یاد کړه (ای محمده! خپل امت ته) په کتاب (قرآن) کې (قصه د) موسی، بېشکه چې دی وو خالص کړی شوی (د الله له طرفه) او وو دی رسول نبي.

تفسیر: یعنې په قرآنکریم کې چې اوس سمدلاسه د موسی علیه السلام بیان کېږي، د هغه ذکر دخلقو په مخ کې وکړه! ځکه چې دی د اسحاق علیه السلام او د یعقوب علیه السلام له نسله داسرائیلي سلسلې یو لوی اولوالعزم رسول الله تېر شوی دی، او هم هغسې چې د یحیی او عیسی علیهما السلام په تذکره کې په خصوصیت سره د نصرانیانو اصلاح او ابراهیم علیه السلام له تذکرې څخه د مکې معظمې د مشرکانو تنبیه مقصود ده؛ همداسې د موسی علیه السلام او هارون علیه السلام له تذکرې څخه ښایي یهودانو ته د دې خبرې ښوونه مقصود ده، چې دوی هم سم د خپل جلیل القدر نبي د ښکاره وو او صریحو وړاندوینو سره د محمد صلی الله علیه وسلم د رسالت او نبوّت اقرار او اعتراف په خلاص زړه او اخلاص اومحبت سره وکړي!.

﴿وَكَانَ رَسُولًا نَّبِيًّا﴾ الآیة ـ هر هغه انسان ته چې د الله تعالی له طرفه وحي راشي هغه «نبي» دی، په انبیاوو کې هغه چا ته چې خصوصي امتیاز حاصل وي یعنې د مکذبانو په مقابل کې د بېل یو مستقل امت په طرف مبعوث شوی وي، یا نوی

کتاب او مستقل شریعت ولري نو هغه ته «رسول نبي» یا «نبي رسول» ویلی کیږي، په شرعیاتو کې جزئي تصرّفات لکه دکوم عام تخصیص یا د مطلق تقیید او نور په رسولانو پورې څه تخصیص نه لري، عام انبیاء هم هغه کولی شي، باقي پر غیر الأنبیاء باندې د رسول او مرسل اطلاق لکه چې د قرآن په بعض مواقعو کې موندل کیږي؛ د دغه مصطلح معنی په اعتبار نه دی، او هلته نور حیثیات معتبر دي، والله أعلم.

وَنَادَيْنٰهُ مِنْ جَانِبِ الطُّوْرِ الْأَيْمَنِ وَقَرَّبْنٰهُ نَجِيًّا ﴿٥٢﴾

او غږ کړی وو مونږ دغه (موسی) ته له جانبه د (غره د) طور چې (د موسی) ښي طرف ته وو، او رانژدې کړی وو مونږ دی حال دا چې مونږ له ده سره د راز خبرې کولې.

تفسیر: یعنې څه مهال (وخت) چې موسی علیه السلام د اور ځلېدل محسوس کړل؛ نو د «طور» د غره په هغه مبارک او میمون جانب کې ورسېد، چې د موسی علیه السلام د ښي لاس پر طرف کې واقع وو، نو الله تعالی نداء او غږ پرې وکړ، او د همکلامی شرف یې وروباښه، تفصیل یې د «طه» په سورت کې راځي.

وَوَهَبْنَا لَهُ مِنْ رَّحْمَتِنَآ أَخَاهُ هٰرُوْنَ نَبِيًّا ﴿٥٣﴾

او بخښلی وو مونږ دغه (موسی) ته له رحمت خپله ورور د ده هارون حال دا چې نبي وو.

تفسیر: یعنې هارون علیه السلام د موسی علیه السلام په کار کې مدد ګار شو، ځکه چې دی یې پخپله غوښتی وو، لکه چې په (۲۰ جزء د القصص سورت په (۳۴) آیت (۴) رکوع) کې راغلي دي: ﴿وَأَخِيْ هٰرُوْنُ هُوَ أَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا فَأَرْسِلْهُ مَعِيَ رِدْاً يُّصَدِّقُنِيْٓ إِنِّيْٓ أَخَافُ أَنْ يُّكَذِّبُوْنِ﴾، او په (۱۶ جزء د «طه» سورت (۲۹ – ۳۰) آیتونو (۲) رکوع) کې مذکور دی: ﴿وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ أَهْلِيْ ﴿٢٩﴾ هٰرُوْنَ أَخِي ﴿٣٠﴾﴾ الآیة ـ نو الله تعالی د موسی علیه السلام دغه دعاء او غوښتنه ومنله، او هارون علیه السلام یې نبي وګرځاوه، او د ده د اعانت او تقویت (وزارت) لپاره یې مقرر کړ.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ إِسْمٰعِيْلَ إِنَّهُ كَانَ صَادِقَ الْوَعْدِ وَكَانَ رَسُوْلًا نَّبِيًّا ﴿٥٤﴾

او یاد کړه (ای محمده ! خپل امّت ته) په کتاب (قرآن) کې (قصه د) اسماعیل، بېشکه چې دی وو صادق (رښتینی) په وعده کې، او وو رسول نبي.

تفسیر: له دې نه د اسماعیل علیه السلام فضیلت پر اسحاق علیه السلام ظاهرېږي، ځکه چې هغه یې یواځې په نبي سره یاد کړ، او اسماعیل علیه السلام ته یې رسول او نبي وفرمایه، په صحیح مسلم کې حدیث دی: «إن الله اصطفی من ولد إبراهیم إسماعیل»، «د ابراهیم علیه السلام له اولادې څخه الله تعالی اسماعیل علیه السلام غوره کړی دی».

وَكَانَ يَأْمُرُ أَهْلَهُ بِالصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ

او وو دی چې حکم به یې کولو اهل (قوم یا امّت) خپل ته په لمانځه سره، او په زکات سره.

تفسیر: ځکه چې د کورنی خلق د قریبوالي لامله له ګردو څخه ړومبی د هدایت مستحق دي، او له همدوی څخه نورې سلسلې هم چلیږي، نو ځکه د «طـه» په (۸) رکوع کې ویلي شوي دي: ﴿وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا﴾ او د تحریم سورت په (۱) رکوع کې راغلي دي ﴿يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيْكُمْ نَارًا﴾ او پخپله نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته هم د الشعراء سورت په (۱۱) رکوع کې هم داسې ارشاد شوی دی: ﴿وَأَنْذِرْ عَشِيْرَتَكَ الْأَقْرَبِيْنَ﴾، ځیني وایي چې: له (اهل) ځنې د دوی ګرد قوم مراد دی، لکه چې د عبد الله بن مسعود ط په مصحف کې د «أهله» په ځای «قومه» وو، والله أعلم.

وَكَانَ عِنْدَ رَبِّهِ مَرْضِيًّا ﴿٥٥﴾

او وو دی په نزد د رب خپل پسندیده (غوره کړی شوی).

تفسیر: یعنې د نورو هدایت یې کول، او په خپله د حمیده وو اقوالو او افعالو خاوند او مستقیم الحال او مرضيّ الخصال وو.

وَاذْكُرْ فِي الْكِتٰبِ إِدْرِيسَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا ﴿٥٦﴾

او یاد کړه (ای محمده ! خپل امت ته) په کتاب (قرآن) کې (قصه د) ادریس !، بېشکه چې دی وو صدّیق (ډېر رښتینی) نبي.

تفسیر: راجح دا ده چې ادریس علیه السلام د آدم علیه السلام او نوح علیه السلام په منځنی زمانه کې تېر شوی دی، وایي چې په دنیا کې په قلم سره لیکل، کالي (کپړې) ګنډل، تلل، او پیمانه کول او د هغو آلاتو او تیرو (ګټو) ترتیبول، او وسلې په کار اچول اول ځلې د ده له خوا په کار اچولي شوي دي، والله أعلم.

وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا ﴿٥٧﴾

او پورته کړی دی مونږ ده لره ځای ډېر اوچت ته.

تفسیر: یعنې ډېر اوچت مقام او لویې مرتبې ته یې رسولی دی، ځینې وایي چې ادریس علیه السلام هم د مسیح علیه السلام په شان ژوندی اسمان ته خېژولی شوی دی، او هلته تر نن پورې ژوندی دی، ځینې وایي: وروسته له دې نه چې پر اسمان خېژولی شوی دی؛ هلته یې قبض الروح کړی شوی دی، د ادریس علیه السلام په نسبت ځینو مفسرینو ډېر اسرائیلیات نقل کړي دي، چې پر هغو ګردو «ابن کثیر رحمه الله» تنقیدات کړي دي، والله أعلم.

أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيِّنَ مِنْ ذُرِّيَّةِ اٰدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَّمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرٰهِيمَ وَإِسْرَآءِيلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا ﴿٥٨﴾

دغه (مخکې مذکور شوي انبیاء له زکریا او عیسی نه تر ادریس پورې) هغه کسان دي چې انعام کړی دی الله پر دوی له انبیاوو څخه له اولادې د آدم (لکه شیث، ادریس)، او له اولادې د هغو کسانو چې بار کړي دي مونږ سره له نوح (په بېړۍ کې لکه ابراهیم، لوط، صالح)، او له اولادې د ابراهیم (لکه اسماعیل، اسحاق)، او له اولادې د اسرائیل یعقوب (لکه موسی عیسی)، او له هغه چا نه چې لاره مو ښوولې وه (دوی ته)، او غوره کړي مو وو (دوی نبوّت او کرامت ته)، هر کله چې وبه لوستلی شو پر دوی باندې آیتونه د رحمان؛ نو لوېدل به (پر ځمکه) سجده کوونکي او ژړېدونکي (له خوفه د الله نه).

تفسیر: یعنې د حق په طرف یې هدایت وکړ، او د نبوّت او رسالت د منصب لپاره یې غوره کړل، سره له دې چې د دوی مقام اوچت دی، او د معراج کمال ته هم رسیدلي دي؛ خو د عبودیت او بندګۍ پشان کې کامل دي، کله چې د الله تعالی کلام اوري؛ د هغه له مضامینو څخه زیات متأثر کیږي، او په نهایتي عاجزی، خشوع، او خضوع سره سر په سجده لوېږي، او د پاک الله په یاد ژاړي، نو ځکه د علماوو اجماع ده چې پر دغه آیت باندې دې هرومرو سجده وکړه شي !، خو د هغه مقربینو د طرز عمل په پیروی او یادونه یو شانته مشابهت له هغوی سره حاصل شي.

فَخَلَفَ مِنۢ بَعۡدِهِمۡ خَلۡفٌ أَضَاعُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَٱتَّبَعُواْ ٱلشَّهَوَٰتِۖ فَسَوۡفَ يَلۡقَوۡنَ غَيًّا ﴿٥٩﴾

پس پیدا شول پس له دوی نه (داسې بد) خلیفګان چې ضایع کړ دوی لمونځ او متابعت وکړ دوی د شهواتو (نفساني خواهشاتو) پس ژر به یو ځای شي دوی له بد عاقبت خپل سره.

تفسير: هغه تېر شوی بیان د پخوانیو حال وو، د وروستنیو حال دا دی چې د دنیا په خوندونو او لذتونو او په نفساني خواهشونو کې ډوب تللي دي، او د الله تعالی له عبادته غافل شوي دي، لمونځ چې أهمّ العبادات دی؛ ضایع کوي یې، ځینې خو د هغه د فرضیت څخه منکر شوي دي، ځینې سره لـه دې چې په فرضیت یې قائل دي خو نه یې کوي، او که یې کوي خو د جماعت، وخت، او د نورو شروطو، حقوقو، او آدابو رعایت یې نه کوي، له دوی ځنې به هر یو ببل ببل درجه په درجه د خپلې ګمراهۍ نتیجه وګوري، چې څنګه د دوی د خسارې او نقصان سبب ګرځي؟ او څرنګه په ډېر سخت عذاب کې اخته کېږي؟ حتّی ځینې د دوی د جهنّم په هغې ډېرې بدې وادۍ کې غورځول کېږي چې د هغې اسم هم (غي) دی.

إِلَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا فَأُوْلَٰٓئِكَ يَدۡخُلُونَ ٱلۡجَنَّةَ وَلَا يُظۡلَمُونَ شَيۡـٔٗا ﴿٦٠﴾

مګر هغه چا چې توبه یې وویستله او ایمان یې راوړ او عمل یې وکړ نېک؛ پس دغه کسان به ننوځي په جنت کې او ظلم به پر دوی ونه کړی شي هیڅ قدر (په تقلیل د ثواب یا تزیید د عقاب).

تفسير: د توبې دروازه خو د داسې مجرمانو لپاره هم نه ده بنده چې سخت ګناهګار وي، او د زړه په صدق سره توبه وباسي، او د ایمان او صالح عمل لاره غوره کوي، او خپل اعمال او افعال اصلاح کوي، او سم درست یې ساتي، نو د جنّت دروازې دوی ته پرانستلې دي، وروسته له توبې څخه هر هغه ښه عمل چې وکړي؛ د پخوانیو بدو اعمالو له سببه په دغو کې هیڅ قسم کمی او تقلیل نه واقع کېږي، او نه یې کوم قسم حق ضایع کېږي، په حدیث کې راغلي دي: «التائب من الذنب کمن لا ذنب له»، «له ګناه څخه توبه کوونکی داسې دی لکه چې له سره یې ګناه نه وي کړي»، «اللّهم تب علینا، إنک أنت التواب الرحیم».

جَنَّٰتِ عَدۡنٍ ٱلَّتِي وَعَدَ ٱلرَّحۡمَٰنُ عِبَادَهُۥ بِٱلۡغَيۡبِۚ إِنَّهُۥ كَانَ وَعۡدُهُۥ مَأۡتِيّٗا ﴿٦١﴾

جنتونه د تل اوسېدلو هغو ته چې وعده یې کړې ده رحمان له بندګانو خپلو سره په غیب باندې (چې نه دي لیدلي دوی دا جنتونه)، بېشکه شان دا دی چې ده وعده د ده، خامخا راځي به ورته (اهل یې).

تفسير: کله چې بنده بې د شیانو د لیدلو څخه محض د انبیاوو علیهم السلام په وینا سره ایمان راوړي، او بې له لیدلو د الله تعالی عبادت کوي، نو پاک الله هم له دوی سره د جنّت د هسې اعلی نعمتونو د ورکولو وعده فرمایلې ده؛ چې د هغو د خوندونو او مزو او ښه والي نظیر او مثال د ده په خوب او خاطر کې هم نه دي تېر شوی، او هغه هرومرو وررسېدونکی او پوره کېدونکی دی، ځکه چې د الله تعالی ګرد مواعید حتميُّ الوقوع قاطع او نه تغییرېدونکي دي.

لَّا يَسۡمَعُونَ فِيهَا لَغۡوًا إِلَّا سَلَٰمٗاۖ

نه به اوري دغه (جنتیان) په دغه (جنت) کې چټي (فضول) خبره مګر (اوري به) سلام.

تفسير: یعنې به جنت کې به لغو، بې باکې، بابیزه او بېکاره خبرې او شورماشور او نور بیهوده شیان له سره نه وي، هو ! د پرښتو او د مؤمنینو له طرفه به د (السلام علیکم ـ وعلیکم السلام) غږونه پورته کېږي.

وَلَهُمْ رِزْقُهُمْ فِيهَا بُكْرَةً وَّعَشِيًّا ﴿٦٢﴾

او دی دوی ته رزق (روزي) د دوی په دغه (جنت) کې سبا او بېگا.

تفسیر: له سبا او بېگا څخه د جنت سبا او بېگا مراد دی، هلته به د دنیا په شان طلوع او غروب (لمر ختل او لویدل) نه وي، چې په هغه سره شپې او ورځې سبا او بېگا مقرر کړ شي، بلکه د خاصو اقسامو انوارو په توارد او تنوّع وي، چې د هغو په واسطه د سبا او بېگا تعیین او تحدید کېدی شي.

تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا ﴿٦٣﴾

دغه (چې ذکر مو وکړ) جنت دی هغه چې په میراث به ورکوو مونږ له بندګانو خپلو هغه چا ته چې وي پرهېزګار.

تفسیر: یعنې د آدم علیه السلام میراث چې ړومبی جنت هغه ته رسېدلی وو، او ښايي د میراث لفظ یې ځکه اختیار فرمایلی وي؛ چې د تملیك په اقسامو کې دغه تملیك له ګردو څخه أتمّ او أحکم قسم دی، چې په دې کې نه د فسخې احتمال شته، او نه د بېرته اخیستلو، او نه د ابطال، او نه د اقالې امکان په کې پیدا کېدی شي.

وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَهُ مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذَٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ﴿٦٤﴾

او (وویل جبرئیل) نه نازلیږو (مونږ ملائکې) مګر په حکم د رب ستا، خاص الله ته دی (علم) پر هر هغه څیز چې په مخ څمونږ کې دی (له راتلونکو کارونو او زمانو)، او هر هغه څیز چې وروسته څمونږ دی (له تېرو کارونو او زمانو)، او هر هغه څیز چې په منځ د دغه کې دی، او نه دی رب ستا هېروونکی.

تفسیر: یو ځلې جبریل علیه السلام تر څو ورځو پورې رانغی، رسول الله صلی الله علیه وسلم منقبض (زړه تنګې) وو، کفّار په داسې ویناوو خولې وپرانستلې چې له محمد صلی الله علیه وسلم څخه د ده رب خفه دی، له دغو طعنو او پیغورو څخه رسول الله صلی الله علیه وسلم لا متأثر او زړه تنګی شو، بالآخر جبریل علیه السلام تشریف راوړ، رسول الله صلی الله علیه وسلم له ده نه د دغومره ورځو د نه راتللو د سبب پوښتنه وفرمایله، او په حدیث کې راغلي دي چې دوی وفرمایل: «ما یمنعك أن تزورنا أکثر مما تزورنا» «هومره چې ته راځې، له هغه څخه زیات ولې نه راځې؟»، الله تعالی لا پخوا جبریل علیه السلام ته داسې ښوولې وه چې ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم په جواب کې داسې ووایه: ﴿وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ﴾ الآیة ـ دا د الله تعالی کلام شو د جبریل علیه السلام له طرفه، لکه چې په ﴿إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ﴾ کې یې مونږ مسلمانانو ته د دعا کولو طریقه ښوولې ده، جواب حاصل داسې شو، چې مونږ خالص بندګان یو، بې د الله تعالی له حکمه خپل بنه هم نشو خوځولی، څمونږ صعود او هبوط ګرد د الله تعالی په اذن او حکم پورې تړلی دی، مطلب دا دی چې د جبریل علیه السلام ژر یا په ځنډ راتلل هم د ده د حکمت او مصلحت تابع دي.

رَّبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ﴿٦٥﴾

(الله) رب د اسمانونو دی او (رب) د ځمکې دی، او (رب) د هغو شیانو دی چې په منځ د دوی کې دي، نو عبادت کوه د ده، او صبر کوه په عبادت د دغه (الله) کې (په طاعت، مصیبت، او له معصیت)، آیا پېژنې ته ده ته کوم هم نام (او مثل بلکه نه یې لرې).

تفسیر: د الله تعالی اسماء د ده صفات دي، یعنې څوک د الله په صفت سره موصوف شته، چې په کې د ده په شان صفات موجود وي؟ کله چې بل هیڅوک نشته، نو د بندګۍ لایق هم بل هیڅوک له سره نشي کېدی.

وَيَقُولُ الْإِنسَانُ أَإِذَا مَا مِتُّ لَسَوْفَ أُخْرَجُ حَيًّا ﴿٦٦﴾

او وایي (له بعثه منکر) انسان: آیا کله چې مړ شم زه؛ نو خامخا ژر به را وایستلی شم (له ځمکې) ژوندی (بلکه نه ژوندی کېږم، او نه بل ژوندون شته).

تفسیر: یعنې انسان د انکار او تعجّب له لارې وایي چې مونږ وروسته له مرګه چې ځمونږ هډوکې هم وراسته او رژیږي، او له خاورو سره ګډیږي، آیا بیا ژوندي او له خپلو قبرونو څخه راپورته کیږو؟ او د عدم له کتمه د وجود په منصّه راتلی شو؟.

أَوَلَا يَذْكُرُ الْإِنسَانُ أَنَّا خَلَقْنَاهُ مِن قَبْلُ وَلَمْ يَكُ شَيْئًا ﴿٦٧﴾

آیا نه یادوي انسان (دا خبره) چې بېشکه مونږ پیدا کړی وو دی پخوا له دې نه، او نه وو دی هیڅ شی (بلکه محض عدم وو).

تفسیر: یعنې الله تعالی دی له عدم څخه وجود ته راووست، نو آیا هغه لوی ذات چې له لا شيء څخه شی او له محض معدوم څخه موجود کوي؛ پر نه دی قادر چې یو شی وروسته له فناء بیا پیدا کړی شي؟ او متفرقه اجزاء یې بېرته راټول کړي؟ آدمي ته لا د ده د ړومبني ژوندون حال او احوال نه دی معلوم، نو څرنګه دی پر خپل وروستني ژوندون خاندي او منلډې وهي:

﴿وَهُوَ الَّذِي يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ﴾ (۲۱ جزء د الروم سورت (۲۷) آیت (۳) رکوع).

فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ﴿٦٨﴾

پس قسم دی په رب ستا باندې چې خامخا راجمع به کړو مونږ هرومرو دوی او شیطانان (ټول)، بیا به خامخا راحاضر کړو مونږ هرومرو دوی چاپېر له دوزخ پر ګونډو پراته (له ډېر هیبته).

تفسیر: یعنې منکرین سره له هغو شیاطینو د قیامت په ورځ کې حاضرولی شي، چې دوی یې اغواء کړي وو، او د هر مجرم شیطان به له ده سره یو ځای نیول کیږي، او دوزخ ته به حاضریږي، له ډېر دهشت او وېرې به له ولاړې څخه لوېږي، او په قراره سره به کېناستی هم نشي، نو پر ګونډو به پرېوځي.

ثُمَّ لَنَنزِعَنَّ مِن كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمَٰنِ عِتِيًّا ﴿٦٩﴾ ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَىٰ بِهَا صِلِيًّا ﴿٧٠﴾

بیا به خامخا وباسو له هرې فرقې نه هر هغه د دوی چې ډېر سخت دی پر رحمان باندې له جهته د سرکشۍ. بیا خامخا مونږ ښه عالم یو پر هغو کسانو چې دوی ښه لایق دي له دغه (دوزخ) سره له جهته د غورځولو، سوځولو، داخلولو.

تفسیر: یعنې د منکرانو هره فرقه چې زیات بد معاش، سرکښ او زړوره وه؛ دوی به له نورو فرقو څخه بېل کړه شي، بیا به دوی کې هر یو چې د خورا ډېرې سزا لایق او د دوزخ زیات حقدار وي؛ نو هغه د الله تعالی په علم کې دی، او له ګردو مجرمانو څخه به ړومبی په اور کې غورځولی شي.

وَإِن مِّنكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ حَتْمًا مَّقْضِيًّا ﴿٧١﴾ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوا وَّنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا
جِثِيًّا ﴿٧٢﴾

او نشته هیڅوک له تاسې مګر چې دی وارد بېدونکی ننوتونکی دی دغه ته (یعنې دوزخ ته چې مؤمن په صراط تیریږي، او کافر ترې لویږي)، دي (دغه عبور علی النار) په رب ستا یقیني حکم پرې کړی شوی. بیا به نجات ورکړو هغو کسانو ته چې پرهېزګاري یې کړې ده، او پرې به ږدو ظالمان په دوزخ کې پر ګونډو پرېوتلي.

تفسیر: یعنې د هر یوه نېک او بد، بري او مجرم، مؤمن او کافر لپاره الله تعالی قسم یاد فرمایلی دی، چې ضرور بالضرور دوی پر دوزخ باندې تېرېدونکي دي، ځکه چې د جنت د تللو لار پر هم دغه دوزخ باندې پورې وځي، چې هغه ته د ځمونږ په عمومي محاوراتو کې «پل صراط» وايي، پر دغه باندې د هر سړي لامحاله تېرېدل دي، د الله تعالی څخه ویریدونکي مؤمنان هر یو سم له خپلې درجې سره له دې نه په تلوار صحیح او سلامت تیریږي، او ګناهګاران به ترې ښوییږي، او لاندې به په دوزخ کې لویږي (العیاذ بالله)، بیا څه مدّت وروسته هر یو سم له خپله عمله سره او هم د انبیاوو او ملائکه وو او صالحینو په شفاعت او بالآخر مستقیما د أرحم الراحمین په لطف او مهرباني دغه ګرد ګناهګاران چې په ربنتیا او صحیح اعتقاد سره یې طیبه کلمه لوستې ده؛ له دوزخه ایستلی کیږي، او یواځې کافران به په کې باقي پاتې کیږي، او د دوزخ خوله به تړله کیږي.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا أَيُّ الْفَرِيقَيْنِ خَيْرٌ مَّقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا ﴿٧٣﴾

او کله چې ولوستی شي پر دوی آیتونه (د قرآن) ځمونږ په دې حال کې چې واضح ښکاره دي؛ وايي هغه کسان چې کافران شوي دي هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی چې: کوم یو له دغو دواړو فرقو څخه خیر بهتر غوره دی له جهته د مقامه، او ډېر ښه دی له جهته د مجلسه.

تفسیر: یعنې کفّارو د لوی قرآن د آیتونو له اورېدو څخه چې په هغه کې د دوی بد انجام ورښوولی شوی دی؛ د استهزاء او تفاخر په ډول غریبو مسلمانانو ته به یې ویل چې: سم ستاسې له زعمه چې په آخرت باندې معتقد یئ، هر شی چې په آخرت کې وړاندې کېدونکی دی، د دواړو فرقو پر موجوده حالت او مهال (وخت) باندې منطبق کېدونکی دی، آیا ځمونږ نننۍ عمارت، أثاث البیت، د هستوګنې سامان، او د ژوندون وسائل او ډول او ډېل (سینګار) له تاسې څخه ښه او بهتر نه دی؟ او ځمونږ مرکې، جرګې او مجالس ستاسې له مرکو، جرګو او مجالسو څخه معتبر او معزّز نه دي؟ یقیناً مونږ ستاسې په نزد پر باطل یو، خو ستاسې له «اهل الحق» څخه مونږ ډېر خوښ، هوسا (ارام) او د سړیو او ملاتړو خاوندان یو، آیا هغه کسان چې ځمونږ له خوفه او وېرې نن د صفا د غره په کندو کې پټیږي، او هلته د نظر بندو په شان ګوښې (بېل) ناست وي، سبا به په یوه ټوپ سره جنّت ته رسیږي، او دوی داسې ګمان کوي چې مونږ په دوزخ کې لویږو؟ بلکه نه دی داسې.

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا ﴿٧٤﴾

او خومره (ډېر) هلاک کړي دي مونږ پخوا له دوی نه له (اهل د) زمانې چې هغوی ښه وو له جهته د سامانونو، او له جهته د شکل او ډول (سینګار) او منظرې.

تفسیر: دا یې د هغوی د خبرې ځواب ورکړ چې پخوا له دې نه ډېر اقوام تېر شوي دي، چې په دنیوي ساز او سامان او نور شوکت او شان کې پر تاسې ډېر اوچت او غوړ او وړ وو، مګر څه مهال (وخت) چې هغوی د انبیاوو په مقابل کې

سر کنبي، تکبّر، تفاخر او لويي خپل کار او شعار ښکاره کړ؛ نو الله تعالی د هغوی بېخ او بکر له سته وويست، او د دنيا په نقشه کې د هغوی نوم او نښان پاتې نشو، نو انسان ته لازم دي چې د دنيا په فاني عيش او نشاط او زائل جاه او جلال او بېکاره مظاهرو او مناظرو ونه غولېږي.

قُلۡ مَن كَانَ فِي ٱلضَّلَٰلَةِ فَلۡيَمۡدُدۡ لَهُ ٱلرَّحۡمَٰنُ مَدًّاۚ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) هر څوك چې وي په ګمراهی کې؛ پس زياتوي (اوږدوي) ده ته رحمان په زياتولو (د مال او د عمر) سره.

تفسير: يعني هر څوك چې په خپله ګمراهی او ضلالت کې لوېدلی وي؛ هغه هم هغسې پرېږده ! ځکه چې دنيا د امتحان ځای دی، دلته هر چا ته في الجمله د هر عمل لپاره آزادي ورکړی شوې ده، د الله تعالی د عادت او حکمت اقتضاء همدا ده، هر څوك چې په خپل کسب او اراده هره يوه لاره ځان ته غوره کړي، وروسته له دې نه چې دی د نېکو او بدو په نتائجو او عواقبو باندې خبر کړ شي؛ دی پر همغې خوښې کړې لار تر يوه حده پورې آزاد او خپلواك پرېښودی شي چې لاړ شي، نو ځکه هر څوك چې د بدی پر لاره درومي؛ پس د هغه په حق کې د دنيا مرفّه الحالي او د عمر اوږدوالی او نور دې د هلاکت او تباهی علائم وګڼل شي !

حَتَّىٰٓ إِذَا رَأَوۡاْ مَا يُوعَدُونَ إِمَّا ٱلۡعَذَابَ وَإِمَّا ٱلسَّاعَةَ فَسَيَعۡلَمُونَ مَنۡ هُوَ شَرّٞ مَّكَانٗا وَأَضۡعَفُ جُندٗا ٧٥

تر هغه پورې کله چې وګوري دوی هر هغه شی چې وعده ورسره کړی شوې وي (د هغه)، يا عذاب (په دنيا په قتل او بند) يا قيامت، نو ژر به پوه شي دوی (په هغه وخت کې چې) څوك دي هغه ډېر بد له جهته د ځای او ډېر ضعيف له جهته د فوځه.

تفسير: يعني کفّار مسلمانان خوار، ذليل او کمزور ګڼي، او خپل ځانونه مغرور، طاقتور او لوی بولي، او پر خپلو اوچتو ماڼيو، محلاتو، او لويو لويو فوجونو او ګوندونو (ډلو) باندې نازېږي او افتخار کوي، ځکه چې اوس پاك الله دوی سر خوشي او خپلواك او آزاد پرېښي دي، څه مهال چې دوی له ستوني څخه ونيول شي، او په دنيوي عذاب يا اخروي عقاب ککړ او اخته شي؛ نو هلته به ورته معلوم شي چې د چا ځای خراب؟ او کوم يو جمعيت کمزوری او بېکاره دی؟ نو په دغه موقع کې به د دوی ساز او سامان، اولاد، لښکر او نور شيان هيڅ په کار او ښه ورنه شي.

وَيَزِيدُ ٱللَّهُ ٱلَّذِينَ ٱهۡتَدَوۡاْ هُدٗىۗ وَٱلۡبَٰقِيَٰتُ ٱلصَّٰلِحَٰتُ خَيۡرٌ عِندَ رَبِّكَ ثَوَابٗا وَخَيۡرٞ مَّرَدًّا ٧٦

او زياتوي الله (په دنيا کې) هغو کسانو ته چې سمه صافه لاره يې موندلې وي هدايت ثبات او يقين، او باقي پاتې کېدونکي (د جزاء په اعتبار) نېك عملونه خير بهتر غوره دي په نزد د رب ستا له جهته د ثواب، او خير بهتر غوره دي له جهته د بېرته ورتللو.

تفسير: يعني دغه دنيوي رونق د الله تعالی په دربار کې له سره په کار ورتلونکی شی نه دی، او يوازې حسنات او نيکي د ده په دربار کې ذي مقدار او قيمتدار دي، په آخرت کې د هرې نېکی بدل او جزاء په ډېر ښه صورت سره ورکوله کيږي.

أَفَرَءَيۡتَ ٱلَّذِي كَفَرَ بِـَٔايَٰتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالٗا وَوَلَدًا ٧٧

آيا پس ليدلي دي تا هغه څوك چې کفر يې اختيار کړ په آيتونو (د قدرت) زمونږ، او وايي: خامخا راکول کيږي (په آخرت کې) ما ته مال او ولد (ځوی، لور).

تفسیر: یعنې اخروي مال او دولت د ایمان او توحید په بدل ورکول کیږي، کافران غواړي چې دنیوي دولت په عقبی کې هم د دوی په برخه شي، یا سره له کُفره د اخروي عیش او تنعّم څخه هم برخه ومومي، چې په کې مزې وکړي، نو دغه له سره کېدونکی نه دی.

أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٧٨﴾

آیا خبر شوی دی (دغه کافر) پر غیب؟، یا اخیستې ده په نزد د رحمان وعده؟ (چې ده ته مال او دولت ورکول کیږي په آخرت کې هم).

تفسیر: یعنې په داسې یقین او وثوق سره چې دغه دعوی کوي؛ آیا ده له غیبه خبر موندلی دی؟ یا یې د الله تعالی څخه وعده اخیستې ده؟ ظاهر دی چې له دغو دواړو څخه یو هم نه دی.

كَلَّا ۚ سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ﴿٧٩﴾

نه دي داسې (چې دوی وایي، یعنې نه ورکول کیږي دوی ته مال او ولد په آخرت کې)، مونږ لیکو هغه څه چې وایي، او وبه غځوو ده ته له عذابه په غځولو (چې د یوه له پاسه به بل ورته ورکوو).

وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ﴿٨٠﴾

او په میراث به اخلو (له ده په مرګ سره) هغه (مال او اولاد) چې (دی یې خپل) وایي، او راځي مونږ ته یواځې (بې له ماله او اولاده).

تفسیر: چې «دی یې خپل وایي» یعنې مال، اولاد، لکه چې د هغه کافر دواړه ځامن مسلمانان شول (کذا في الموضح)، یا دا مطلب چې دغه شیان به ترې بېل کړل شي، او په قیامت کې به دی یواځې حاضریږي، نه به مال ورسره وي نه اولاد.

وَاتَّخَذُوا مِن دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لِّيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ﴿٨١﴾

او نیولي دي (کفّارو) غیر له الله څخه باطل معبودان لپاره د دې چې شي دوی ته سبب د عزّت (او مدد).

تفسیر: یعنې برسېره له ماله او اولاده د خپلو باطلو معبودانو امداد او مرستې ته هم هیله من (ارزومند) او امیدوار دي، چې هغوی به دوی ته د الله په حضور ډېرې لویې درجې ورکوي، حال دا چې له سره داسې کېدونکې نه دي، او دغه نشه یوه چټي (فضول) سودا ده؛ چې دوی پخپلو دماغو کې ورته ځای ورکړی دی.

كَلَّا ۚ سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا ﴿٨٢﴾

نه دي داسې (لکه چې دوی یې ګڼي)، بلکه ژر به منکر شي (دغه معبودان) په عبادت د دوی، او شي به دغه (معبودان) پر دغو (عابدانو) خپلو دښمنان.

تفسیر: یعنې هغه معبودان به له دوی سره څه مدد وکړي؟ بلکه دوی به بالذات د دغو مشرکانو د دغه عبادت څخه هم د بې زارۍ اعلان وکړي، او د دوی په مقابل کې به ودریږي، او د هغوی د عزت زیاتولو په ځای به د دوی د زیات

ذلت او رسوايي سبب وګرځي، لکه چي په (۲۶ جزء د الأحقاف سورت په (۶) آيت (۱) رکوع) کي راغلي دي:
﴿وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ﴾

أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ﴿٨٣﴾ فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ۖ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ﴿٨٤﴾

آيا نه ګوري، نه يې خبر (ای محمده !) چي بېشکه مونږ ليږلي مسلط کړي مو دي شيطانان پر کافرانو باندي چي اوچتوي تېزوي دوی په اوچتولو تېزولو سره (په ګناه). پس تلوار مه کوه پر دوی (په ژر غوښتلو د عذاب) بېشکه همدا خبره ده چي شمېرو مونږ دوی ته (ورځي د عمر د دوی) په شمارلو سره.

يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمَٰنِ وَفْدًا ﴿٨٥﴾ وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَىٰ جَهَنَّمَ وِرْدًا ﴿٨٦﴾

ياد کړه هغه ورځ چي جمع به کړو پرهېزګاران رحمان ته سواره مېلمانه بللي شوي. او شړو (په شدّت سره) مجرمان (طرف د) دوزخ ته پلي (پياده) تږي.

تفسير: يعني هم هغسي چي ځاروي ډېر تږي او حيوانات د تندي په حالت کي د اوبو د ګودر په لوري په منډو او تلوار ورځغلي؛ دغه مجرمان به هم د دوزخ کندي ته همداسي شړل کيږي.

لَّا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِندَ الرَّحْمَٰنِ عَهْدًا ﴿٨٧﴾

نه مالکان کيږي (هيڅ يو د دوی) د شفاعت (د هيچا) مګر هغه څوک چي اخيستي يې ده په نزد د رحمان وعده (او په شفاعت مجاز دی).

تفسير: يعني له هغوی سره چي الله تعالی د شفاعت وعده فرمايلې ده، لکه ملائکي، انبياء، صالحين او نور، نو همدوی به درجه په درجه شفاعت کوي، بلا اجازه هيڅوک به د ژبي خوځولو توان هم ونه لري، او د همغو خلقو سپارښت به وکړی شي چي د هغوی په حق کي د سپارش کېدلو وعده لا له پخوا څخه ورکړی شوې ده، د کافرانو په حق کي به شفاعت له سره نه کيږي.

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَٰنُ وَلَدًا ﴿٨٨﴾

او وايي (کتابيان مشرکان) نيولی دی رحمان ولد (ځوی، لور).

تفسير: ډېرو کسانو غير الله خپل معبود مقرر کړی وو، ليکن يوه ډله داسي هم وه، چي د الله تعالی لپاره يې د اولاد تجويز هم کړی وو، مثلاً نصرانيانو مسيح عليه السلام او ځينو يهودانو عُزير عليه السلام او ځينو مشرکينو د عربو پرښتو ته به يې د الله تعالی لوڼي ويل (العياذ بالله)، (نو فرمايي الله دغو کفّارو ته):

لَّقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ﴿٨٩﴾ تَكَادُ السَّمَاوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ﴿٩٠﴾ أَن دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا ﴿٩١﴾

خامخا په تحقيق راتله کړي دي تاسي په يو شي لوی سره له حيثيته د ګناه. نژدې دي اسمانونه چي وچوي له دې (نسبته) (او نژدې ده چي) ټوټې ټوټې شي ځمکه او ولوېږي غرونه غرکي غرکي (ذري ذري). له جهته د دې چي بولي دوی رحمان ته ولد (ځوی، لور).

تفسیر: یعنې دغه داسې درنه خبره ویلې شوې ده، او داسې یوه سخته بې ادبه کلمه د دوی له خولې څخه ایستلې شوې ده، چې د هغې له اورېدلو څخه اسمان، ځمکه، غرونه، د هول او هیبت او وېرې لامله لویږي، چوي، ټوټې ټوټې او ټکر ټکر کیږي.

وَمَا يَنۢبَغِي لِلرَّحۡمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا ﴿٩٢﴾

او نه ښایي رحمان ته چې ونیسي (دی څوک) ولد (لور، ځوی).

تفسیر: یعنې د الله تعالی د تقدیس او تنزیه او د غناء له کماله دا خبره منافي ده، چې څوک خپل اولاد وګرځوي، بنا پر هغه غرض چې نصرانیان د اولاد قائل شوي دي، یعنې د «کفارو» مسئله کله چې الله تعالی د «رحمن» په صفت سره وپېژني او ویې مني، نو بیا دغه ضرورت له سره نه پاتې کیږي.

إِن كُلُّ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ إِلَّآ ءَاتِي ٱلرَّحۡمَٰنِ عَبۡدًا ﴿٩٣﴾

نه دي ټول هغه (ګرد شیان) چې دي په اسمانونو کې او ځمکه کې مګر راتلونکي دي رحمن ته په دغه حال کې چې بنده وي هر یو (نه ولد).

تفسیر: یعنې ګرد د الله تعالی مخلوق او د ده بندګان دي، او د ده د بندګۍ په صفت سره د ده په حضور کې حاضریږي، نو بیا بنده څرنګه ولد کېدی شي؟ کله چې ګرد ده ته محکوم او محتاج وي؛ نو دی به ځوی او لور ته څه ضرورت او احتیاج ولري.

لَّقَدۡ أَحۡصَىٰهُمۡ وَعَدَّهُمۡ عَدًّا ﴿٩٤﴾ وَكُلُّهُمۡ ءَاتِيهِ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ فَرۡدًا ﴿٩٥﴾

خامخا په تحقیق احاطه کړېده (الله) دوی لره (له جهته د علم او قدرت) او شمیرلي دي (الله) دوی (ټول من حیث الأشخاص والأنفاس والأفعال او نورو) په شمېرلو سره. او دا ټول چې دي راتلونکي دي دغه (الله) ته په ورځ د قیامت کې یواځې.

تفسیر: یعنې د بشر یو فرد هم د الله تعالی له بندګۍ څخه نشي خارجېدی، او ګرد د الله تعالی په حضور کې جره او یواځې حاضریږي، په دغه وخت کې به له ګردو تعلّقاتو او سازو او سامانو څخه بېل کړی شي، او فرضي معبودان، ځامن، لمسي، پلار، مور اونور به یې هیڅ په کار نه ورځي.

إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ سَيَجۡعَلُ لَهُمُ ٱلرَّحۡمَٰنُ وُدًّا ﴿٩٦﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) ژر به وګرځوي دوی ته رحمان دوستي محبت (په زړونو د خلقو کې).

تفسیر: یعنې دوی ته به خپل محبّت ورکوي، یا پخپله به له دوی سره محبت کوي، یا د خلقو په زړونو کې به د دوی محبت غورځولی کیږي، په حدیث کې راغلي دي چې که الله تعالی ته کوم بنده محبوب وي؛ نو ړومبی جبرئیل علیه السلام خبروي چې زه د فلاني بنده سره محبّت کوم، نو ته هم له هغه سره محبت ولره، نو جبریل علیه السلام په اسمانونو کې د دغې خبرې اعلان خوروي، له اسمانونو ځنې دغه خبره راښکته کیږي او ځمکې ته رسیږي، او د ځمکې په خلقو کې د دغه بنده په برخه کې حسن القبول حاصلیږي، یعنې بې تعلّق خلق چې د هغوی کومه خاص نفع او ضرر د ده له ذات سره نه وي تړلی؛ له ده سره به مینه او محبت کوي، د دوی په زړونو کې اول د ده محبّت اچولی

کيږي، وروسته د عامو او د خاصو قبول ورحاصليږي، که نه په ابتداء کې محض د عامو په طبقه کې حُسن القبول حاصلېدل او بيا د ځينو الله منونکو او صالحانو هم د کومې غلط فهمۍ او نورو په اساس د ده په طرف تمايل کېدل د مقبوليت عند الله دليل نه دی، ښه پرې وپوهېږئ.

فَإِنَّمَا يَسَّرْنَٰهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ ٱلْمُتَّقِينَ وَتُنذِرَ بِهِۦ قَوْمًا لُّدًّا ﴿٩٧﴾

پس بېشکه همدا خبره ده چې اسان کړی دی مونږ دغه (قرآن) په ژبه ستا لپاره د دې چې زېری ورکړې په دې سره پرهېزګارانو ته، او چې وويروې په دې سره قوم جګړه کوونکی.

تفسير: يعني لوی قرآن په نهايت سهل، او صاف بيان او په واضح او ښکاره ډول سره پرهېزګارانو ته بشارت اوروي، او جګړه کوونکو ته د ناکارو کارونو له خرابو نتائجو څخه خبر ورکوي.

وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّن قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُم مِّنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا ﴿٩٨﴾

او څومره ډېر هلاک کړي دي مونږ پخوا له دوی نه له (اهل د) زمانې، آيا محسوسوې (مومې وينې) ته له دوی نه يو تن، يا اورې له دوی کوم نرم غږ هم؟.

تفسير: يعني څومره بدبخت د خپلو جرائمو په سزا هلاک شوي دي، چې د هغوی نوم او نښان هم بيخي د دنيا له مخې څخه محو او ورک شوی دی، نن د دوی د پښو د غږ (کړهار) او د تکبّر او لويې ډېر نری آواز (بڼهار) هم نه اورېده کيږي، نو هغه کسان چې نن ورځ له رسول کريم صلی الله عليه وسلم سره مقابله او مجادله کوي، او د آيات الله څخه انکار او پرې استهزاء کوي؛ دوی دې نه بېفکره کيږي، ممکن دي چې دوی هم په همداسې تباه کوونکو عذابونو کې اخته شي، او په يوه رپه کې به بيخي سپېره او پناه شي.

تمّت سورة مريم بحسن توفيقه و نصره، فله الحمدُ والمنّةُ أولا و آخراً.



# سُورَةُ طٰهٰ

«د (طه) سورت مکي دی، پرته له (۱۳۰) او (۱۳۱) آیتونو چې مدني دي، (۱۳۵) آیتونه (۸) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۰) او په نزول کې (۴۵) سورت دی، وروسته د «مریم» له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

طٰهٰ ۝١ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى ۝٢ اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ۝٣

نه دی نازل کړی مونږ پر تا باندې قرآن لپاره د دې چې مشقت محنت پر خپل ځان بار کړې. مګر (نازل کړی دی مونږ) تذکره پند لپاره د هغه چا چې ویرېږي (له الله نه).

تفسیر: یعنې لوی قرآن ځکه نازل شوی دی، چې د هر چا زړه چې نرم وي، او له الله تعالی څخه ویرېږي؛ دی د قرآني بیاناتو څخه پند او نصیحت حاصل کړي، او د قرآنکریم له روحاني فیوضاتو او برکاتو څخه بې برخې او محروم پاتې نشي، او داسې کوم غرض نشته چې د پاک قرآن په نزول سره تاسې خامخا په کوم شاقه محنت او شدید تکلیف کې اخته کړي، او نه دغه مقدّس قرآن داسې یو شی دی چې (نعوذ بالله) د ده حامل یا عامل له سره بې برخې یا محروم یا ناکام پاتې شي، بلکه د دارینو له فیوضاتو څخه فائز المرام ګرځي، تاسې د دغو مکذبینو د خبرو د اورېدلو څخه له سره خفه ملول او تنګ زړه مه کېږئ !.

تَنْزِيْلًا مِّمَّنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالسَّمٰوٰتِ الْعُلٰى ۝٤

(نازل شوی دی) په نازلېدلو له طرفه د (هغه) الله چې پیدا کړې یې ده ځمکه او اسمانونه لوړ لوړ (اوچت اوچت).

تفسیر: نو ځکه ضروري ده چې مخلوق دغه قرآنکریم په ډېره خوښۍ او اخلاص سره د الله تعالی جلّ جلاله د الوهیت پاک کلام ومنې !او پر خپلو سرونو او سترګو یې کېږدي !او قطعًا له هغه څخه تخلّف او تمرّد ونه کړي، او ترې غاړه ونه غړوي.

اَلرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى ۝٥

(دغه خالق د ځمکو او اسمانونو ډېر مهربان) رحمان پر عرش باندې د پاسه دی.

تفسیر: د «استواء علی العرش» مفصّل بیان د «الأعراف» سورت په (۶) رکوع کې لیکلی شوی دی، د «عرش» په متعلق له نصوصو څخه هم دغومره ثابتېږي، چې پایې لري، او خاصو پرښتو هغه راپورته کړی دی، او د اسمانونو په سر کې د قُبې په شان ولاړ دی.

لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى ۝٦

خاص الله لره دي هغه شيان چې په اسمانونو کې دي، او هغه شيان چې په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې ملکا خلقًا عبيدًا)، او هغه شيان چې په منځ د دوی کې دی، او هغه چې لاندې له لوندې ځمکې څخه دی.

**تفسير:** يعنې هم هغه الله تعالی يواځې د غير له شرکته له اسمانونو څخه نيولې تر ځمکې او له ځمکې څخه تر تحت الثّری پورې د ټولو کائناتو خاص مالك او خالق دی، د ده په تدبير او انتظام سره دغه ګردې سلسلې قائمې دي، له «ثری - لوندې ځمکې» څخه د ځمکې هغه لاندنی طبقه (پوړ) مراد ده چې تل د اوبو د قرب او اتصال له سببه لونده وي.

وَإِن تَجۡهَرۡ بِٱلۡقَوۡلِ فَإِنَّهُۥ يَعۡلَمُ ٱلسِّرَّ وَأَخۡفَى ۝٧

او که ښکاره وينا کوې؛ پس بېشکه دغه (الله) عالم دی په پټې خبرې او په ډېرې پټې.

**تفسير:** يعنې هره هغه خبره چې په زور سره وويله شي؛ هغه به څرنګه د هغه علاّم الغيوب څخه پټه پاتې کېدی شي؟ چې هغه ته هره ښکاره او پټه بلکه له پټو څخه ډېرې زياتې پټې خبرې هم ورته ښې معلومې دي، او ترې ډېر خبردار دی، هره هغه خبره چې په ګوښې (پناه ځای) او يواځې ځای کې په ډېر ورو وويل شي، يا هغه اندېښنه خيال او تصوّر چې تش په زړه کې ګرځېدلی وي، او لا د قول او عمل مرتبې ته نه جهرًا او نه سرًا رسېدلې وي، يا تر اوسه هيڅ په زړه کې هم نه وي ګرځېدلې او وروسته له دې نه ګرځېدونکې وي؛ د الله تعالی علم پر دغو ګردو محيط دی، نو څکه شريعت بلا ضرورت په چغه يا په ډېر زور سره د ذکر کولو څخه ممانعت فرمايلی دی، پر ته له هغه مواقعو څخه چې په کې ذکر په جهر سره منقول يا د ځينو معتبرو مصالحو په بناء د تجربه کارانو په نزد نافع ګڼلی شوی دی، نو هغه به له دغه نهي له عمومه مستثنی وي.

ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ لَهُ ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰ ۝٨

الله (چې دی) نشته بل بر حق معبود مګر يواځې همدی دی، خاص همده ته شته نومونه نېک (ښايسته).

**تفسير:** په پاس آيت کې د الله تعالی هغه صفات چې بيان شول: لکه دا چې الله تعالی خالق الکل علی الاطلاق مالك، رحمان، مطلق قادر، او د محيط علم څښتن دی، د هغو اقتضاء دا ده چې الوهيت هم د همده خاصه وي، ماسوا الله څخه دې د بل هيڅا په مخ کې د عبوديت او د بندګی سرښکته نه کړ شي.

وَهَلۡ أَتَىٰكَ حَدِيثُ مُوسَىٰٓ ۝٩

او آيا راغلې ده (يا په تحقيق راغلې ده) تاته قصه د موسی؟.

**تفسير:** له دې ځايه راهيسې د موسی عليه السلام قصه په ډېر بسط او تفصيل سره بيانوي، تر څو چې اورېدونکې وپوهېږي چې نبي کريم صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلم ته د قرآني وحي راتګ کومه نوې او عجيبه خبره نه ده، څرنګه چې پر موسی عليه السلام وحي نازله شوې وه؛ پر دوی هم نازله شوې ده، هم هغسې چې د موسی عليه السلام وحي پر توحيد او نورو اسلامي تعليماتو مشتمله وه؛ د دوی وحي کې هم پر همدغو شيانو تأکيدات صادر شوي دي، هغه مصاعب، متاعب او شدائد چې موسی عليه السلام د حق په تبليغ کې برداشت کړي دي؛ د همغو برداشت کول پر دوی هم دي، هم هغسې چې بالآخر بری او غلبه د موسی عليه السلام په برخه شوه؛ د دوی په برخه هم کېدونکې ده،

او لکه چې د موسی علیه السلام دښمنان مقهور او مغلوب شول؛ یقینا د محمد صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلم دښمنان هم مخذول او مقهور، او دوی به هم غالب او منصوریږي، په دغه مناسبت د موسوي نبوّت ابتدائي قصه بیان فرمايي، څو پرې رسول الله صلی الله علیه وسلم لا متسلّي او ښه ډاډه شي.

إِذْ رَأَىٰ نَارًا فَقَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا إِنِّي آنَسْتُ نَارًا لَّعَلِّي آتِيكُم مِّنْهَا بِقَبَسٍ أَوْ أَجِدُ عَلَى النَّارِ هُدًى ﴿١٠﴾ فَلَمَّا أَتَاهَا نُودِيَ يَا مُوسَىٰ ﴿١١﴾

کله چې ولید (موسی) اور؛ نو ویې ویل اهل خپل ته: واوسئ (تاسې دلته) بېشکه ما ولید یو اور، ښايي ما لره چې زه راوړم تاسې ته له هغه اوره کومه لګولې لمبه، یا ومومم زه په اور باندې لار ښوونکې (چې لار راوښيي). پس کله چې راغی هغه (اور ته)؛ نو غږ ورته وکړی شو (داسې چې) ای موسی !.

تفسیر: د دې قصې مختلفې اجزاء د القصص، طه، او الأعراف د سورتونو څخه جمع کېدی شي، دلته له (مدین) څخه (د مصر) په طرف د بېرته ورتګ واقعه مذکوره ده: امام أحمد رحمه الله له وهب رحمه الله څخه نقل کړي دي: کله چې موسی علیه السلام د ﴿يَا مُوسَىٰ﴾ غږ واورېد؛ نو څو ځلې یې «لبیک» وویل، او عرض یې وکړ چې «زه ستا غږ اورم، او د راتګ احساس دې کوم، مګر نه دې وینم چې چېرې یې».

إِنِّي أَنَا رَبُّكَ فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ ۖ إِنَّكَ بِالْوَادِ الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٢﴾

بېشکه زه چې یم همدا زه رب ستا یم، پس وباسه (له دواړو پښو) پڼې خپلې، بېشکه ته چې یې په کنده پاکه د طوی کې یې.

تفسیر: «طوی» د هغه میدان نوم دی، ښايي چې دغه میدان لا له پخوا څخه متبرک وو، یا اوس متبرک شوی دی، د موسی علیه السلام پڼې (یا به) ناپاکې وې؛ نو ځکه پرې وویستلی شوې (یا یې تواضعًا او أدبًا) پرې وویستلې، باقې هغه موزې، ماسې، پڼې (څپلی) چې پاکې وي؛ له هغو سره لمونځ کېدی شي، د دې موضوع پوره مسائل دې په فقهیه کتابونو کې وکتل شي !.

وَأَنَا اخْتَرْتُكَ فَاسْتَمِعْ لِمَا يُوحَىٰ ﴿١٣﴾

او ما غوره کړی یې ته (په رسالت)، پس غوږ کېده هغه حکم ته چې وحي کیږي (تا لره !).

تفسیر: «ما غوره کړی یې ته» یعنې په ګرد جهان کې مې همدا ته د نبوّت، رسالت او د مکالمې شرف لپاره انتخاب او غوره کړې، نو ځکه هغه احکام چې وروسته له دې نه درکول کیږي؛ هغه په غور او دقّت سره واوره، او پرې عمل وکړه !.

إِنَّنِي أَنَا اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدْنِي وَأَقِمِ الصَّلَاةَ لِذِكْرِي ﴿١٤﴾

بېشکه زه چې یم همدا زه الله یم، نشته لایق د عبادت بل هیڅوک مګر همدا زه یم، پس عبادت کوه ځما ! او سم دروه (اداء کوه) لمونځ لپاره د ذکر (یادوني) ځما.

تفسیر: په دغه کې یې د خالص توحید او د هر قسم بدني او مالي عبادت حکم وکړ، څرنګه چې لمونځ أهمّ العبادات دی، د هغه ذکر په خصوصیت سره وکړی شو، او په دې باندې یې تنبیه فرمایلې ده، چې د لمانځه څخه اعظم مقصود

د الله تعالی یادول دي، ګواکي له لمانځه څخه غافلېدل د الله تعالی له یاده غافلېدل دي، او د ذکر الله په متعلّق یې په بل ځای کې فرمایلي دي: ﴿وَاذْكُرْ رَّبَّكَ إِذَا نَسِيتَ﴾ یعنې که په هېره او خطا سره د الله تعالی له یاده غافل شې؛ نو هر کله مو چې په یاد درشي هغه یاد کړئ ! د لمانځه حکم هم همداسې دی، چې که په خپل وخت کې دغفلت او نسیان لامله پاتې شي؛ نو هر کله مو چې په یاد درشي قضا یې راوړئ «فلیصلها إذا ذکرها».

إِنَّ السَّاعَةَ آتِيَةٌ أَكَادُ أُخْفِيهَا

بېشکه قیامت راتلونکی دی، زه اراده لرم د دې چې پټ کړم دغه (وخت د راتللو د قیامت).

**تفسیر:** یعنې اراده لرم چې د هغه د راتګ وخت له ګردو څخه مخفي او پټ وساتم.

لِتُجْزَىٰ كُلُّ نَفْسٍ بِمَا تَسْعَىٰ ﴿١٥﴾

لپاره د دې چې جزاء ورکړه شي هر نفس ته په هغو عملونو چې کوي یې (له خیر او شره).

**تفسیر:** یعنې د قیامت راتګ د دې لپاره هم ضروري دی، چې هر سړي ته د هغه د نېکۍ او بدۍ جزا ور ورسیږي، او د مطیع او عاصي په منځ کې هیڅ قسم التباس او اشتباه پاتې نشي ، دغه وروسته له عبادت او توحیده د معاد د عقیدې تعلیم وشو.

فَلَا يَصُدَّنَّكَ عَنْهَا مَنْ لَّا يُؤْمِنُ بِهَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ فَتَرْدَىٰ ﴿١٦﴾

پس نه دې بندوي نه دې منع کوي تا خامخا له دغه (ایمان راوړلو په قیامت یا له لمانځه) هغه څوک چې نه لري ایمان په هغه او متابعت کوي د خواهشو خپلو، (که منع راوړې؛) پس ته به هلاک شې.

**تفسیر:** یعنې نه دې اړوي تا له ایمان راوړلو څخه، یعنې پر قیامت باندې د ایمان راوړلو یا له لمانځه څخه، کله چې الله تعالی موسی علیه السلام ته نصیحت کړی دی، چې د بدانو له صحبت څخه ځان ساته ! نو نورو ته لا د دغې خبرې ضرورت شته چې هرومرو دې خپل ځان د بدانو له مصاحبته وساتي.

وَمَا تِلْكَ بِيَمِينِكَ يَا مُوسَىٰ ﴿١٧﴾ قَالَ هِيَ عَصَايَ أَتَوَكَّأُ عَلَيْهَا وَأَهُشُّ بِهَا عَلَىٰ غَنَمِي وَلِيَ فِيهَا مَآرِبُ أُخْرَىٰ ﴿١٨﴾

او څه شیز دی دغه په ښي لاس د تا کې ای موسی؟. نو وویل (موسی): دا همسا ځما ده چې تکیه کوم پر دې او وهم (څنډم) په دې سره (پاڼې د ونې چې تویې شي) پر ګلهو ځما، او دي ماته په دغه (همسا) کې مطالب حوائج نور هم.

**تفسیر:** یعنې په دې کې هیڅ شبهه نشته چې دغه هم هغه ځما د لاس لرګی دی، چې تل یې په خپل لاس کې ګرځوم، او پرې تکیه کوم، او خپلو پسو او ګلهو ته پاڼې پرې څنډم، دښمن او موذي ځناوران پرې شړم او دفع کوم یې، او نور ډېر ضروري کارونه هم پرې انجاموم.

قَالَ أَلْقِهَا يَا مُوسَىٰ ﴿١٩﴾ فَأَلْقَاهَا فَإِذَا هِيَ حَيَّةٌ تَسْعَىٰ ﴿٢٠﴾

وفرمایل (الله) چې وغورځوه دغه (همسا) ای موسی. پس ویې غورځوله دا (همسا) پس ناڅاپه دا مار وو ژوندی چې منډې یې وهلې (ځغلېده).

تفسیر: یعنې په مجرّد د دې چې همسا یې پر ځمکه وغورځوله؛ دغه همسا د اژدها په شکل واوښته، چې د ډېر نري مار په شان په ډېرې جلتی سره ځغلېده، موسی علیه السلام د دې یو ناڅاپه د دغه انقلابي وضعیت له لیدلو څخه د بشریت په مقتضی وویرېد.

قَالَ خُذۡهَا وَلَا تَخَفۡ سَنُعِيدُهَا سِيرَتَهَا ٱلۡأُولَىٰ ۝٢١

وفرمایل (الله موسی ته) ونیسه دا (همسا) او مه ویرېږه ! ژر به وګرځوو مونږ دغه (همسا) هم هغه شکل ړومبني خپل ته.

تفسیر: یعنې کله چې ببرته په لاس درشي؛ دغه ښامار بیا هغه همسا کیږي.

وَٱضۡمُمۡ يَدَكَ إِلَىٰ جَنَاحِكَ تَخۡرُجۡ بَيۡضَآءَ مِنۡ غَيۡرِ سُوٓءٍ ءَايَةً أُخۡرَىٰ ۝٢٢

او پیوست کړه (ښی) لاس خپل تخرګ خپل ته حال دا چې راوبه وځي تک سپین (روښانه) بې له عیبه (د برګوالي)، حال دا چې دغه معجزه ده بله.

تفسیر: یعنې خپل لاس په تخرګ کې ننه باسه، او بیا یې له ګرېوانه وباسه ! نو دغه لاس به دې تک سپین او روښانه ښکاري، او دغه سپین والی د برص (برګوالي) او نورو عیبو له پلوه به نه وي چې عیب وګڼل شي.

لِنُرِيَكَ مِنۡ ءَايَٰتِنَا ٱلۡكُبۡرَى ۝٢٣

لپاره د دې چې وښیو تاته ځینې له هغو معجزاتو چې ډېرې لویې دي.

تفسیر: یعنې د همسا او بیضاء لاس معجزې له هغو لویو نښو او معجزاتو د قدرت څخه دوه معجزې دي، چې د هغو ورښودل تاسې ته منظور دي.

ٱذۡهَبۡ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ۝٢٤ قَالَ رَبِّ ٱشۡرَحۡ لِي صَدۡرِي ۝٢٥

لاړ شه فرعون ته (سره له دغو معجزو) بېشکه چې هغه باغي شوی دی (تجاوز یې کړی دی له حدوده د بندګۍ). وویل (موسی:) ای ربه ځما ! پرانیځه ارته کړه ما لره سینه ځما.

تفسیر: یعنې حلیم، بردبار او د حوصلې خاوند مې وګرځوې، چې د خلاف الطبع شیانو د لیدلو څخه ژر خفه نه شم، او د رسالت په تبلیغ کې له هغو مصاعبو سره چې مخامخ کېږم، او هغه متاعب چې ځما په مقابل کې راځي؛ له هغو څخه ونه ویرېږم، بلکه په ارت زړه او راڼه وچولي (تندي) یې وګالم (برداشت کړم)، او متحمل یې شم.

وَيَسِّرۡ لِيٓ أَمۡرِي ۝٢٦

او آسان کړه ماته دغه مهم کار ځما (چې تبلیغ دی).

وَٱحۡلُلۡ عُقۡدَةً مِّن لِّسَانِي ۝٢٧ يَفۡقَهُواْ قَوۡلِي ۝٢٨

او پرانیځه غوټه له ژبې ځما. چې وپوهیږي خلق په خبرو ځما (په وخت د تبلیغ کې).

تفسیر: ژبه یې په وړوکیتوب کې سوځېدلې وه (چې د هغه قصه په نورو تفاسیرو کې لیکلې شوې ده)، او په صاف ډول سره یې خبرې نشوې کولې، نو ځکه یې دغسې دعاء وکړله.

وَاجْعَلْ لِّيْ وَزِيْرًا مِّنْ اَهْلِيْ ﴿۲۹﴾ هٰرُوْنَ اَخِي ﴿۳۰﴾ اشْدُدْ بِهٖٓ اَزْرِيْ ﴿۳۱﴾ وَاَشْرِكْهُ فِيْٓ اَمْرِيْ ﴿۳۲﴾

او وګرځوه ما ته یو وزیر (مرستیال) له اهله ځما. هارون (چې دی) ورور ځما. قوي کړه په ده سره ملا ځما. او شریک کړه دغه (هارون له ما سره) په دې کار ځما کې.

تفسیر: هارون علیه السلام په عمر کې له موسی علیه السلام څخه لوی وو.

كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۳﴾ وَّنَذْكُرَكَ كَثِيْرًا ﴿۳۴﴾ اِنَّكَ كُنْتَ بِنَا بَصِيْرًا ﴿۳۵﴾

لپاره د دې چې تسبیح ووایو ستا (تسبیح ډېر) او یادوو تا په ذکر ثناء ډېره. بېشکه ته چې یې یې ته په (احوالو) ځمونږ ښه خبردار لیدونکی یې.

تفسیر: یعنې که دواړه سره یو ځای شو؛ د دعوت او تبلیغ په مواقعو کې به ډېر په زور او شور سره ستا پاکي او کمالات بیان کړو، او د دعوت له مواضعو څخه قطع نظر کله چې مونږ هر یوه ته د بل د ملګرتیا قلبي تقویه او د زړه ډاډینه حاصله وي؛ نو په خپلو کورونو او ځایونو کې به په نشاط او طمانیت سره ستا ذکر (او عبادت) په کثرت سره کوو.

قَالَ قَدْ اُوْتِيْتَ سُؤْلَكَ يٰمُوْسٰى ﴿۳۶﴾

وفرمایل (الله) په تحقیق درکړی شوی تا ته سوال د تا ای موسی.

تفسیر: یعنې کوم شیان چې تاسې وغوښتل؛ د الله تعالی له لوري تاسې ته درکړل شول.

وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلَيْكَ مَرَّةً اُخْرٰٓى ﴿۳۷﴾

او خامخا په تحقیق احسان کړی وو مونږ پر تا یو کرت بل (پخوا له دې نه).

اِذْ اَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اُمِّكَ مَا يُوْحٰٓى ﴿۳۸﴾

کله چې وحي کړې وه مونږ مور ستا ته (الهامًا یا په خوب کې) دغه چې اوس اوراوه شي.

تفسیر: یعنې په خوب یا وینښتیا او بیداری کې، د الهام په ډول یا په هم هغه وخت کې د کوم مجهول الاسم نبي په ژبه ستا مور ته هغه حکم مو درلېږلی وو، چې د هغه لېږل مناسب وو.

تنبیه: د «ایحاء» له لفظه د موسی علیه السلام د مور نبوّت نه ثابتېږي، لکه چې د پاس تقریر څخه ظاهر دي، ځکه چې نبي هغه دی چې د الله تعالی له طرفه ورته د احکامو وحي راشي، او د هغه په تبلیغ مأمور وي، او دلته دغه تعریف نه صادقېږي.

اَنِ اقْذِفِيْهِ فِي التَّابُوْتِ فَاقْذِفِيْهِ فِي الْيَمِّ فَلْيُلْقِهِ الْيَمُّ بِالسَّاحِلِ يَاْخُذْهُ عَدُوٌّ لِّيْ وَعَدُوٌّ لَّهٗ

چې وغورځوه دغه (موسی) په تابوت (صندوق) کې، (پس بیا) وغورځوه دغه (تابوت) په سیند کې، بس ودې غورځوي هغه صندوق لره سیند په ساحل (غاړه خپل کې، چې) ونیسي دغه (موسی) دښمن ځما او دښمن د ده.

تفسیر: یعنې کله چې موسی علیه السلام پیدا شو، د ده والده وویرېده، چې که د فرعون سړي خبر شي؛ نو دغه ځما هلك به هم ووژني، او د ده مور او پلار ته به هم ربږ (زحمت) او تکلیف ورپېښوي، چې دغه مو ولې راښکاره نه

کړ، نو په دغه وخت کې د الله تعالی له طرفه دغه تدبير ورالهام شو، او د موسی عليه السلام والدې دی په يو سر تړلي صندوق کې په سيند کې لاهو کړ، له دغه سيند څخه يوه وياله د فرعون باغ ته تللې وه، نو دغه صندوق په دغه وياله کې راغلی په وچه کې ونښت، يا د فرعون د باغ په حوض کې ودرېد، د فرعون ښځه (بي بي آسيه رضي الله تعالى عنها) چې يوه ډېره عفيفه عابده اسرائيلي مېرمن وه، له دغه صندوق څخه دغه هلك وويست، او د فرعون مخ ته يې وروړاندې کړ، او ورته ويې ويل: راځه چې دغه ماشوم مونږ د خپل ځوی په شان وروزو (وپالو)، فرعون هم د دې هلك د ليدلو څخه خوښ شو، او مينه يې پرې راغله، مګر د ده د ځوی ګرځولو ځنې يې انکار وکړ، مګر د بي بي آسيې رضي الله تعالى عنها له خاطره به يې د خپل ځوی په شان د هغه روزنه (پالنه) کوله، او په دې شان د الله تعالی د عجيب او غريب قدرت ظهور په عمل راغی.

وَأَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّي ۚ

او اچولې مې وو پر تا محبت مينه له طرفه ځما (چې ګرد خلق پر تا مين شول).

تفسير: يعنې مونږ له خپل لوري په دغه وخت کې د مخلوق په زړه کې ستا محبت وغورځاوه، چې هر ليدونکی به له تا سره مينه او محبت وکړي، يا يو خاص محبت مو پر تا وغورځاوه، چې ته د الله تعالی محبوب وګرځېدې، نو له هر چا سره چې پاك الله محبت وکړي؛ بندګان هم له هغه سره مينه او محبت کوي.

وَلِتُصْنَعَ عَلَىٰ عَيْنِي ﴿٣٩﴾

او (ومې کړه دغه کارونه) چې تربيت ستا وشي ځما د سترګو لاندې.

تفسير: يعنې د خلقو په زړونو کې ستا د محبت غورځولو څخه دغه غرض وو چې ځمونږ د سترګو لاندې ستا کتنه، حفاظت، او روزنه وکړه شي، او د داسې سخت دښمن په کور کې سره له دې چې شپې او ورځې دې تېرولې؛ خو بيا ستا يوه ويښته ته څه ضرر او زيان ونه رسېږي.

إِذْ تَمْشِي أُخْتُكَ فَتَقُولُ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ مَن يَكْفُلُهُ ۖ فَرَجَعْنَاكَ إِلَىٰ أُمِّكَ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ ۚ

کله چې تله خور د تا (لپاره د پلټنې ستا؛ نو يې وليدې چې د هيچا تی نه نيسې) پس ويې ويل: آيا وښايم زه تاسې ته هغه څوك چې تربيت وکړي د ده (نو قبول شو قول د دې، او مور يې راوسته او تی يې ونيوه)، پس بېرته راوستې مونږ ته مور خپلې ته لپاره د دې چې يخې (رڼې) شي سترګې د دې (او خوشاله شي په ليدلو د تا) او خفه نشي.

تفسير: پوره قصه به په بل ځای کې راځي، د موسی عليه السلام مور وروسته له هغه چې صندوق يې په سيند کې وغورځاوه، د بشريت په مقتضی سخته خپه او پرېشانه شوه، او په دغه انديښنه کې ډوبه تللې وه چې د دې د ځوی به څه حال شوی وي؟ نه ورته معلومه وه چې ژوندی دی؟ يا د کوم ځناور خوراك شوی دی؟ نو د موسی عليه السلام خور ته يې وويل: «ای لورې ! ته په پټه سره خپل ورور ولټوه ! او د ده د حال او احوال په تحقيق کې اوسه ! د بل لورې د الله تعالی په مشيت دغسې حال مهيّأ شو، چې موسی عليه السلام د هيڅ يوې ښځې تی به يې په خوله نه اخيست، نو ځکه ډېر ښځې راغلې او بېرته لاړلې، د موسی عليه السلام خور (بي بي مريمې) چې د ده په تکل کې وه (بي بي آسيې رضي الله تعالى عنها) ته يې وويل: «که مو امر او اجازه وي؛ نو زه به يوه ډېره ښه ښځه تاسې ته راولم، چې دغه هلك د هغې تی واخلي، يا هغه داسې دارو او درمان وکړي چې دغه هلك څه شي وخوري، او له لوړې څخه ورته څه زيان او

ضرر ونه رسیږي، او په ښه شان سره یې وروزي، او پالنه یې وکړي»، پرې حکم وشو چې هله ژر شه ! او ژر یې راوله ! دا لاړه او د موسی علیه السلام مور یې ورته راوسته، او هغه یې په الله او بسم الله سره خپل تي ته واچاوه، او ده د هغې تی واخیست، او په غړکهار سره یې په تي رودلو باندې شروع وکړه، د فرعون په کور کې ډېره خوښي او خوشالي پیدا شوه، او ټول د دغه هلک د موندلو څخه په خپلو کالیو (جامو) کې نه ځایېدل، د موسی علیه السلام مور وویل چې: زه دلته نشم پاتې کېدی، که ماته اجازه راکړه شي چې دغه هلک له خپله ځانه سره کور ته یوسم، او په پوره حفاظت او اهتمام سره یې روزنه او پالنه وکړم، بالآخر د فرعون له طرفه د دایي په توګه د دغه هلک په تربیت مأموره شوه، او دی یې بېرته خپل کور ته راوست، او د پاچاهي په اعزاز او اکرام سره د ده په تربیت باندې یې لاس پورې کړ.

وَقَتَلْتَ نَفْسًا فَنَجَّيْنٰكَ مِنَ الْغَمِّ

او مړ کړی وو تا یو سړی، پس نجات مو درکړ تاته له غمه (د قصاص او عقاب).

تفسیر: دغه پوره قصه د القصص په سورت کې راځي، خلاصه یې دا چې د ځلمیتوب په وخت کې د موسی علیه السلام له لاسه یو قبطي وژلی شوی وو، موسی علیه السلام وویرېد چې د ده په قصاص کې هم په دنیا او هم په عقبی کې زه مأخوذ کېږم، نو پاک الله ده ته له دغو دواړو اقسامو پرېشانیو څخه نجات ورکړ، د اخروي پرېشانی څخه په دې ډول چې د توبې توفیق یې وروباښه چې قبوله هم شوه، او له دنیوي څخه په دې ډول چې موسی علیه السلام یې له مصر وویست، او مدین ته یې ورساوه، چې پوره قصه یې په بل ځای کې راځي.

وَفَتَنّٰكَ فُتُوْنًا ۫

او ومې ازمویلې ته (په قسماقسم) ازموینو سره.

تفسیر: یعنې ستا امتحان د الله تعالی له طرفه په څو څو ځایونو کې واخیست شو، او ته په کې بریالی (کامیاب) ثابت شوې.

فَلَبِثْتَ سِنِيْنَ فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ ۙ۬ ثُمَّ جِئْتَ عَلٰى قَدَرٍ يّٰمُوْسٰى ﴿۴۰﴾

پس واوسېدی ته څو کاله په اهل د مدین کې بیا راغلې ته (اوس دلته) پر هغه وخت مقرّر شوي (د عمر چې ما اندازه کړی وو، او د رسالت لایق دی)، ای موسی !.

وَاصْطَنَعْتُكَ لِنَفْسِيْ ﴿۴۱﴾

او جوړ کړی (غوره کړی) یې ماته لپاره د ځان خپل (په رسالت).

تفسیر: یعنې د خپلې وحې او رسالت لپاره یې تیار، او په خپلو خواصو او مقربینو کې یې داخل کړې، او څرنګه یې چې اراده وه؛ ستا روزنه (پالنه) یې وفرمایله.

اِذْهَبْ اَنْتَ وَاَخُوْكَ بِاٰيٰتِيْ وَلَا تَنِيَا فِيْ ذِكْرِيْ ﴿۴۲﴾

لاړ شه ته (ای موسی) او ورور د تا په معجزو ځما سره، او سستي مه کوئ په یاد ځما کې.

تفسیر: یعنې د هغه کار لپاره چې ته جوړ کړی شوی یې؛ اوس یې وخت راغلی دی، چې ته له خپل ورور هارون علیه السلام سره د هغه لپاره ولاړ او تیار شئ ! او هغه دلائل او معجزات چې تاسې ته درکړی شوی دی؛ د ضرورت

په وخت کې یې ظاهر کړې، کله چې موسی علیه السلام پخوا له دې نه د دعاء کولو په وخت کې ویلي وو: ﴿کَیۡ نُسَبِّحَكَ كَثِيرٗا ۝ وَنَذۡكُرَكَ كَثِيرًا﴾ نو ځکه یې دلته په ﴿وَلَا تَنِيَا فِي ذِكۡرِي﴾ په ویلو سره د هغه تذکره وفرمایله، یعنې د الله تعالی د نامه په تبلیغ کې په پوره تیارۍ او فعالیت سره کار وکړئ! او تمامو احوالو او اوقاتو کې عموما او د دعوت او تبلیغ په وخت کې خصوصًا پاك الله په کثرت سره یادوئ! چې دغه ذکر الله د اهل الله لپاره د بري او کامیابۍ لویه وسیله او د دښمن په مقابل کې مهمه وسله ده.

ٱذۡهَبَآ إِلَىٰ فِرۡعَوۡنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ۝٤٣

لاړ شئ (تاسې دواړه) فرعون ته، بېشکه چې دی باغي شوی دی په دعوی د الوهیت سره.

فَقُولَا لَهُۥ قَوۡلٗا لَّيِّنٗا لَّعَلَّهُۥ يَتَذَكَّرُ أَوۡ يَخۡشَىٰ ۝٤٤

پس ووایئ ده ته خبره پسته ښایېږي چې دی پند واخلي (که ستا رسالت ورته محقق شي) یا وویرېږي (له الله که متوهم شي).

تفسیر: یعنې د دعوت او تبلیغ او وعظ او نصیحت په وخت کې پستې، آسانه، رقت راوړنکې خبرې وکړه، اګر که د ده د تمرّد او طغیان لامله د قبول هیله او امید نشته، خو بیا هم تاسې داسې خیال وکړئ! ممکن دی چې هغه له فکره او غور څخه کار واخلي، او دغه پند او نصائح پرې اثر وغورځوي، یا د الله تعالی د جلال او جبروت د بیان اورېدلو څخه وویرېږي، او د طاعت او انابت په لوري متمائل شي، او په خبرو او اترو کې ډېره نرمي وکړي، له دې توصیې څخه د دعاتو او مبلغینو لپاره ډېر لوی دستور العمل په لاس راځي، لکه چې په قرآن کې داسې صاف ارشاد شوی دی: ﴿ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُ﴾ (۱۴ جزء د النحل سورت (۱۲۵) آیت (۱۶) رکوع).

قَالَا رَبَّنَآ إِنَّنَا نَخَافُ أَن يَفۡرُطَ عَلَيۡنَآ أَوۡ أَن يَطۡغَىٰ ۝٤٥

وویل (دواړو ورونو) ای ربه څمونږ! بېشکه مونږ ویرېږو چې تلوار به وکړي پر مونږ (په عقوبت سره)، یا به لا نافرمان شي (چې ستا په نسبت به بدې خبرې وکړي).

قَالَ لَا تَخَافَآۖ إِنَّنِي مَعَكُمَآ أَسۡمَعُ وَأَرَىٰ ۝٤٦

وفرمایل (الله) مه ویرېږئ (تاسې دواړه)، بېشکه زه له تاسې سره یم (په معاونت او نصرت)، اورم او وینم (په ښه شان سره ستاسې اقوال او افعال هم).

تفسیر: یعنې هغه خبرې چې ستاسې او د ده په منځ کې کېږي، یا هغه معاملات چې در وړاندې کېږي؛ هغه ګرد زه اورم او وینم یې، زه هیڅ له ستاسې نه یم جلا، او تل ځما نصرت او حمایت له تاسې سره دی، خوف او وېره هیڅ مورد نه لري، او نه ښایي چې تاسې په دغه فکر کې واوسئ.

فَأۡتِيَاهُ فَقُولَآ إِنَّا رَسُولَا رَبِّكَ فَأَرۡسِلۡ مَعَنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ وَلَا تُعَذِّبۡهُمۡۖ

پس ورشئ (تاسې دواړه) ده ته پس ووایئ چې بېشکه مونږ یو رسولان د رب ستا، نو ولېږه له مونږ سره بني اسرائیل، او مه په عذابوه دوی (په سختو سختو تکالیفو سره).

تفسیر: په دغه کې د درې شیانو په طرف دعوت ورکړی شوی دی:

(۱): د فرعون او د نورو مخلوقاتو کوم رب شته چې رسول یې رالېږلی دی.

(۲): مونږ دواړه د هغه رسولان یو، لهذا څمونږ اطاعت او د رب العزّت عبادت ښایي چې وکړی شي، ګواکې په دغې جملې سره د ایمان د اصل په لوري دعوت ورکړی شوی دی، همدغه یې په «والنازعات» (د برشم ۳۰ جزء کې) داسې اداء کړی دی: ﴿فَقُلْ هَلْ لَكَ اِلٰٓى اَنْ تَزَكّٰى﴾ ﴿وَاَهْدِيَكَ اِلٰى رَبِّكَ فَتَخْشٰى﴾

(۳): هغه شی دی چې د هغه ضرورت په هغه خاص وخت کې واقع شو، یعني د بني اسرائیلو نجات د فرعونیانو د ذلت او رقّت راوړونکې غلامۍ څخه، مطلب یې دا دی چې: پر دغې شریفې او نجیب الأصلي کورنۍ ظلم او ستم مه کوئ ! او د دغه ډېر ذلیل او حقیر مریتوبه یې ازاد او خپلواک کړئ، او له مونږ سره یې پرېږدئ چې هر چېرې مو چې زړه غواړي لاړ شو، او په ازادۍ سره شپې او ورځې تېرې کړو.

قَدْ جِئْنٰكَ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكَ ؕ

په تحقیق راغلي یو مونږ تا ته سره له معجزې له جانبه د رب ستا.

تفسیر: یعني څمونږ دغه د رسالت دعوی بې دلیله نه ده، بلکه پر خپل صداقت د الله تعالی د قدرت معجزې او دلائل هم راسره شته.

وَالسَّلٰمُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى ۝٤٧ اِنَّا قَدْ اُوْحِيَ اِلَيْنَآ اَنَّ الْعَذَابَ عَلٰى مَنْ كَذَّبَ وَتَوَلّٰى ۝٤٨

او سلامتي ده (له عذابه) په هغه چا چې متابعت وکړي د سمې صافې لارې. بېشکه مونږ چې یو په تحقیق وحي کړی شوې ده مونږ ته چې بېشکه عذاب په هغه چا دې چې تکذیب کوي (د رسولانو) او مخ ګرځوي (له اسلامه).

تفسیر: یعني هر څوک چې څمونږ خبره ومني، او پر سمه صافه لاره لاړ شي؛ نو د هغه لپاره د دواړو دارینو سعادت او سلامت ور په برخه کېږي، او هر څوک چې تکذیب او اعراض کوي؛ نو د هغه لپاره عذاب یقیني دی، اعم له دې نه چې یواځې اخروي عذاب وي، یا په دنیا کې هم ورته ورسیږي، ښایي چې اوس تاسې د خپل آخرت په فکر کې شئ، او هره لاره مو چې خوښه وي؛ هم هغه ځان ته غوره کړئ.

کله چې راغلل دوی فرعون ته، او د رب العالمین پیغام یې ورساوه؟

قَالَ فَمَنْ رَّبُّكُمَا يٰمُوْسٰى ۝٤٩

نو وویل (فرعون) پس څوک دی رب ستاسې ای موسی؟.

قَالَ رَبُّنَا الَّذِيْٓ اَعْطٰى كُلَّ شَيْءٍ خَلْقَهٗ ثُمَّ هَدٰى ۝٥٠

وویل موسی: رب څمونږ هغه ذات دی چې ورکړی یې دی هر څیز ته (له مخلوقاتو) صورت شکل د ده (موافق د کماله د ده سره)، بیا یې لاره هم ورښوولې ده.

تفسیر: یعني هر شي ته یې سم د هغه له استعداد سره شکل، صورت، قوې، خواص او نور عنایت فرمایلي دي، او د حکمت له کمال یې هم هغسې جوړ کړی دی چې هغه لره لازم وو، بیا په مخلوقاتو کې د هر یو د وجود او بقاء لپاره

هغه سامان چې ضرورت وو؛ هغه يې ورمهيأ كړې دي، او هر څيز ته يې له خپل مادي ساخت او روحاني قوّتونو او خارجي سامانونو څخه د كار اخيستلو لاره ورښوولې ده، بيا داسې يو ټينګ نظام يې راښوولی دی، مونږ ته يې هم هدايت راكړې دی، چې د دغو مصنوعاتو له وجوده د صانع پر وجود څرنګه استدلال وكړو، فلله الحمد والمنة.

قَالَ فَمَا بَالُ الْقُرُونِ الْأُولَىٰ ﴿٥١﴾ قَالَ عِلْمُهَا عِندَ رَبِّي فِي كِتَابٍ ۖ لَّا يَضِلُّ رَبِّي وَلَا يَنسَى ﴿٥٢﴾

ووېل (فرعون): پس څه وو (حال) د خلقو پخوانيو؟. ووېل (موسی): چې علم د هغوی په نزد د رب ځما دی په كتاب (لوح محفوظ) كې (ليكلي دي)، چې نه يې وركځ كوي رب ځما او نه يې هېروي (هيڅ څيز).

تفسير: يعني «كه د الله تعالى پر وجود باندې داسې روښان دلائل قائم شوي دي، او د هغه په طرف چې ته دعوت وركوې حق دی؛ نو د تېرو اقوامو په متعلّق څه بيان كړه، چې آخر له دوی ځنې ډېر كسان سره د داسې واضحو او روښانو دلائلو له موجوديته ولې يې له حق څخه غاړه وغړوله، او قبول يې نه كړ؟ آيا پر هغو ګردو باندې يې عذاب نازل كړ او تباه شول؟ كه ته نبي يې نو د ګردو اقوامو تفصيلي حالات ښايي تاته خامخا معلوم وي»، دغه ګرد لا يعنې او لرې له مقصده خبرو باندې ځكه د فرعون خوله وسپړېده چې د موسى عليه السلام د هدايت مضامين په داسې فضولو او چټي خبرو سره مخلوط كړي، موسى عليه السلام وفرمايل چې: انبياوو ته د ګردو شيانو تفصيلي علم لرل ضروري نه دي، د هر قوم د تفصيلي حالاتو څخه اطلاع او علم يواځې د الله تعالى كار دی، چې د ځينو مخفي مصالحو په بناء هغه يې په كتاب (لوح محفوظ) كې هم ليكلی دی، د الله تعالى د محيط علم څخه يو شی نه ابتداء غائب كېدی شي او نه په علم كې راغلی څيز د يوې شيبې لپاره هم هېرېدی شي، پر هغه د هر قوم د اعمالو په هر وخت كې چې كړي يې وي؛ د هغو ګردو د يوې يوې ذرې ليكلې شوې حساب شته، چې په هر يوه لازمو اوقاتو كې يې ښكارولی شي.

الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ مَهْدًا وَسَلَكَ لَكُمْ فِيهَا سُبُلًا وَأَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجْنَا بِهِ أَزْوَاجًا مِّن نَّبَاتٍ شَتَّىٰ ﴿٥٣﴾

هغه الله چې ګرځولې يې ده تاسې ته ځمكه فرش (غوړېدلې) او رواني كړې يې دي تاسې ته په دې كې لارې، او نازلې كړې يې دي (له طرفه) د اسمانه اوبه؛ پس راوباسو مونږ په دې (اوبو) سره هر هر قسم له ګياو (شنيليو) څخه رنګ په رنګ.

تفسير: يعنې د اوبو، سيندونو، او غرونو له منځه يې پر ځمكه لارې جوړې كړې، او له يوه ځايه بل ځای ته يې بيولې او نښلولې دي، چې پر هغو له ورتګه له يوه ملكه بل ملك ته رسېدی شي، او د اوبو په ذريعه الله تعالى راز راز شنيلي، تركودۍ (نباتات) مېوې، دانې، غلې اونور يې پيدا كړې دي.

كُلُوا وَارْعَوْا أَنْعَامَكُمْ ۗ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّأُولِي النُّهَىٰ ﴿٥٤﴾

وخورئ تاسې ترې او څروئ (په كې) چارپايان خپل، بېشكه په دې (مذكورو شيانو كې) خامخا (د قدرت ډېر) دلائل دي لپاره د خاوندانو د عقل.

تفسير: يعنې ښې او عمده غذاوې تاسې خورئ، او هغه شيان چې ستاسې نه پكارېږي؛ هغه پر خپلو چارپايانو خورئ، چې د هغوی په محنت او زيار (كوښښ) ايستلو سره على الأكثر دغه پيداوار حاصلېږي.

مِنۡهَا خَلَقۡنٰكُمۡ وَفِيۡهَا نُعِيۡدُكُمۡ وَمِنۡهَا نُخۡرِجُكُمۡ تَارَةً اُخۡرٰى ﴿۵۵﴾

(خاص) له دې (ځمكې څخه) پيدا كړي يئ مونږ تاسې، او په همدې ځمكې كې ننه باسو تاسې، او له دې (ځمكې) څخه راباسو تاسې بل كرت (دويم ځلي په بعث بعد الموت سره).

**تفسير:** د ګردو پلار آدم عليه السلام له خاورو څخه پيدا كړى شوى دى، بيا په هغو أغذيه وو (خوراكو) سره چې د انسان د بدن روزنه (تربيت) كيږي؛ هغه هم له خاورو څخه وځي، وروسته له مرګه هم په عمومي ډول ګرد انسانان وړاندې يا وروسته له خاورو سره ګډيږي، همداسې د قيامت په وخت كې همدغه اجزاء چې له خاورو سره ګډوډ شوي وي؛ بيا سره ټوليږي او بيا له سره پيدا كيږي، او هغه مړي چې په قبرونو كې خښ وي؛ بيا ژوندي ترې راپورته كيږي.

وَلَقَدۡ اَرَيۡنٰهُ اٰيٰتِنَا كُلَّهَا فَكَذَّبَ وَاَبٰى ﴿۵۶﴾

او خامخا په تحقيق ورښوولې (ورپېژندلې) وې مونږ دغه (فرعون ته) معجزې (د قدرت خپلې) ټولې، نو تكذيب يې وكړ (د معجزو) او منع يې راوړه (له ايمانه په هغو باندې).

قَالَ اَجِئۡتَنَا لِتُخۡرِجَنَا مِنۡ اَرۡضِنَا بِسِحۡرِكَ يٰمُوۡسٰى ﴿۵۷﴾

وويل (فرعون) آيا راغلى يې ته مونږ ته لپاره د دې چې وباسې مونږ له ځمكې ځمونږ په سحر خپل اى موسى؟.

**تفسير:** دغه خبره يې خپل قوم قبطيانو ته ځكه وويله؛ څو هغوى ته د موسى عليه السلام په مقابل كې نفرت او اشتعال وركړي، يعنې د موسى عليه السلام غرض او مقصد دا دى چې د جادو په زور مونږ د دې ملك څخه وشړي، او د كوډګرى په داسې ننداري د عوامّو جميعت له خپله ځانه سره ملګري كړي، او په دغه چل د قبطيانو پر ګردو املاكو او اموالو قابض شي.

فَلَنَاۡتِيَنَّكَ بِسِحۡرٍ مِّثۡلِهٖ فَاجۡعَلۡ بَيۡنَنَا وَبَيۡنَكَ مَوۡعِدًا لَّا نُخۡلِفُهٗ نَحۡنُ وَلَاۤ اَنۡتَ مَكَانًا سُوًى ﴿۵۸﴾

پس خامخا رابه وړو تاته سحر پشان د دې سحر، پس مقرّر كړه په منځ ځمونږ او په منځ د تا كې يوه وعده چې نه به كوو مخالفت له هغه مونږ او نه ته، (او وګرځوه ځاى د وعدې) يو ځاى هوار (متوسّط په منځ د طرفينو كې).

**تفسير:** يعنې ته پخپله په دغه اراده كې له سره نشې كامياببدى، له مونږ سره ډېر لوى لوى كوډګران شته، ښه خو به دا وي چې ته له هغوى سره مقابله وكړې، پس په هره ورځ او هر ځاى كې چې ته له هغوى سره مقابله كول غواړې؛ د هغه د تعيين اختيار تاته دركړى كيږي، او دا ضروري ده هر هغه وخت چې معين كيږي؛ ښايي چې له هغه څخه هيڅوك ځان ونه كاږي، او داسې ځاى دې وټاكل شي، چې هلته د دواړو طرفينو لپاره يو شان سهولت حاصل وي، او په منځ كې واقع وي، او په كېناستلو كې د راعي او رعايا او حاكم او محكوم او د وړوكي او د لوى هيڅ فرق او توپير سره نه وي، او هره يوه ډله په ډېره آزادۍ او خپلواكۍ سره د خپل قوّت او قدرت مظاهره په كې وكړى شي، او ميدان هم خلاص، ارت، صاف او هوار وي، څو ګرد كتونكي هر شى بې تكلفه وليدى شي، او ټول مشاهدات په ښه ډول سره وكړى شي.

قَالَ مَوْعِدُكُمْ يَوْمُ الزِّينَةِ وَأَنْ يُحْشَرَ النَّاسُ ضُحًى ﴿٥٩﴾

وويل (موسی) وخت د وعدې د تاسې ورځ د جشن (د قبطیانو) ده، او دا چې راټول به کړل شي خلق په وخت د څاښت کې.

تفسير: يعنې د انبياوو په كارونو كې له سره هيڅ يو تلبيس او تلميع نه وي، د دوی ګرد معاملات ښكاره، واضح او صاف وي، موسی علیه السلام وفرمايل: «ښه په هم هغه ورځ كې چې تاسې لويه مېله او رسمي جشن كوئ؛ په هم هغه ورځ كې څه وخت چې لمر ښه پورته راشي، نو دغه د مقابلې نمايش (ښودنه) هم شروع شي، يعنې په دغه مېله كې په هر ځای او هر وخت چې ډېر خلق سره راټول شوي وي، په رڼا ورځ كې دې دغه مقابله وكړله شي، څو كتونكي ډېر زيات وي، او د ورځې په رڼا كې هر څوک هر شی په ښه شان سره وګوري، او هيڅ يوه اشتباه په منځ كې واقع نشي».

فَتَوَلَّىٰ فِرْعَوْنُ فَجَمَعَ كَيْدَهُ ثُمَّ أَتَىٰ ﴿٦٠﴾

پس مخ وګرځاوه (خپلو مشرانو ته) فرعون پس راټول يې كړل (اسباب آلات) د مكر فرېب خپل بيا راغی (موعد ته سره له جادوګرانو او اتباعو خپلو).

تفسير: د دغې خبرې د غوږه كولو څخه وروسته فرعون له مجلس څخه پاڅېد، او د كوډګرانو د ټولولو په ترتيباتو يې لاس پورې كړ، په هم هغه ټاكلي وخت د مقابلې په ميدان كې په داسې حال حاضر شو، چې د كوډګرانو يو لوی فوج له ده سره وو، له دوی سره د انعاماتو او اكرامونو لويې وعدې هم كړې شوې وې، او دوی ګرد په دې باندې ګمارلي شوي وو، چې په هر ډول سره چې كيږي، ښايي چې موسی علیه السلام ته ماتې وركړئ، ګواكې دوی د حق او حقانيت د مغلوبولو په فكر كې وو.

قَالَ لَهُمْ مُوسَىٰ وَيْلَكُمْ لَا تَفْتَرُوا عَلَى اللَّهِ كَذِبًا فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ ۖ وَقَدْ خَابَ مَنِ افْتَرَىٰ ﴿٦١﴾

وويل دغو (ساحرانو) ته موسی: (نازل دې كړي الله پر تاسې) هلاكت د تاسې، مه تړئ پر الله باندې دروغ؛ پس هلاک به كړي تاسې په عذاب سره، او په تحقيق خراب او نااميده شو هر هغه څوک چې دروغ يې وتړل (پر الله).

تفسير: معلومېږي چې په دغه مجمع كې موسی علیه السلام هر يوه ساحر ته د ده له حاله سره سم پند او نصيحت فرمايلی وو، كله چې كوډګران د حق په مقابله په جادو سره كوونكي وو، نو هغوی ته يې تنبيه وركوله چې ګورئ! په لوی لاس خپل ځانونه هلاكت كې مه اچوئ! د الله تعالی د قدرت نښې او معجزې او د انبياوو علیهم السلام معجزو ته سحر ويل، او بې حقيقته شيان د ثابت شويو شيانو او حقائقو په مقابله كې وړاندې كول ګواكې پر پاک الله دروغ تړل دي، اما د دروغ تړونكو خاتمه او انجام له سره ښه نه دی، بلكه انديښنه شته چې پر داسې خلقو اسماني آفت نازل شي، او د دوی بېخ او بكر وباسي، او بنياد او اساس يې ور وران كړي.

فَتَنَازَعُوا أَمْرَهُمْ بَيْنَهُمْ وَأَسَرُّوا النَّجْوَىٰ ﴿٦٢﴾

پس سره جګړه وكړه دغو (ساحرانو) په كار خپل پخپلو منځونو كې، او پټ يې وساته دغه راز (په منځ خپل كې).

تفسیر: د موسی علیه السلام له دغې موعظې او تبلیغ څخه د کوډګرانو په جرګه کې سخته وېره او اندېښنه ورپیدا شوه، او پخپلو منځونو کې یې په جګړو او مناقشو لاس پورې کړ، بالآخر وروسته له ډېرو مناظرو، مخالفتونو اومنازعو د فرعون له اثره متأثر شول، او هغه خبرې او اترې یې وکړې چې وروسته راځي:

قَالُوٓا۟ إِنْ هَٰذَٰنِ لَسَٰحِرَٰنِ يُرِيدَانِ أَن يُخْرِجَاكُم مِّنْ أَرْضِكُم بِسِحْرِهِمَا وَيَذْهَبَا بِطَرِيقَتِكُمُ ٱلْمُثْلَىٰ ﴿٦٣﴾

وویل (جادوګرانو) دا دواړه خامخا ساحران دي اراده لري دوی دواړه چې وباسي تاسې له ځمکې (ملك) د تاسې په سحر خپل سره، او بوځي (محو کړي دوی دغه) لاره (د دین) د تاسې چې ډېره غوره ده.

تفسیر: یعنې چې له پخوا راهیسې ستاسې کوم دین او رسوم جریان لري، هغه له منځه لرې کړي، او خپل دین هم رائج کړي، چې د هغه په زور په دغه ملك کې ستاسې عزّت، پت، ګټه او شته، همدغه دواړه ورونه غواړي چې له تاسې څخه وشکوي، او یواځې همدا دواړه پرې قابضان شي.

فَأَجْمِعُوا۟ كَيْدَكُمْ ثُمَّ ٱئْتُوا۟ صَفًّا ۚ وَقَدْ أَفْلَحَ ٱلْيَوْمَ مَنِ ٱسْتَعْلَىٰ ﴿٦٤﴾

پس راجمع کړئ تاسې (اسباب د سحر او) مکر خپل، بیا راشئ میدان د معارضې ته صف صف، او په تحقیق بریالی شو نن ورځ هغه څوك چې غالب شو.

تفسیر: یعنې د موقع اهمیت وپېژنئ! وقت له لاسه مه باسئ! په پوره همّت او قوّت سره ګرد یو ځای شئ! او د دوی د پره کولو تدبیر وکړئ! او دفعتًا داسې حمله پرې وروړئ! چې په یو وار کې د دوی قدمونه ونبوېږي او وپرځېږي، چې د نن ورځې جګړه فیصله کوونکې جرګه ده، د نن ورځې بری دائمي کامیابي او د تل بری دی، هر هغه فریق چې نن غالب او بریالی شي؛ نو هغه د همېشه لپاره منصور او مفلح ګڼلی کېږي.

قَالُوا۟ يَٰمُوسَىٰٓ إِمَّآ أَن تُلْقِىَ وَإِمَّآ أَن نَّكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَلْقَىٰ ﴿٦٥﴾ قَالَ بَلْ أَلْقُوا۟ ۖ فَإِذَا حِبَالُهُمْ وَعِصِيُّهُمْ يُخَيَّلُ إِلَيْهِ مِن سِحْرِهِمْ أَنَّهَا تَسْعَىٰ ﴿٦٦﴾

وویل (کوډګرانو) ای موسی! یا به ته غورځوې (اول همسا خپله) او یا به شو مونږ اول د هغه چا چې غورځوي (همسا خپله). وویل (موسی) بلکه وغورځوئ تاسې ړومبی! (نو واچول ساحرانو اسباب د سحر خپل)، پس ناڅاپه (دغه وخت) هغه پړی د دوی او همساګانې د دوی په خیال کې راوستې کېدې دغه (موسی ته) له وجه د سحر د دغه (ساحرانو) داسې چې ببشکه دغه (ماران دي چې) منډې وهي (او ځغلي).

تفسیر: موسی علیه السلام په ډېرې بې پروایی سره جواب ورکړ، چې نه ړومبی تاسې خپلې نندارې راوښیئ، او خپلې چارې مو رابښکاره کړئ! څو د باطل د زور ازمویلو څخه وروسته د حق غلبه په پوره ډول سره دربښکاره شي، دغه قصه د الأعراف سورت په (۱۲) رکوع کې پخوا له دې نه هم لیکلې شوې ده، هلته دې ولوسته شي.

فَأَوْجَسَ فِى نَفْسِهِۦ خِيفَةً مُّوسَىٰ ﴿٦٧﴾

بیا ومونده (موسی) په نفس خپل کې وېره (چې خلق به د سحر او معجزې فرق ونشي کړی او ګمراه به پاتې شي).

تفسير: يعنې د کوډګرانو د دغې چارې د ليدلو څخه ناپوهان تېر نه وځي، او د سحر (کوډو) او د معجزې په منځ کې به سره فرق ونه کړی شي، نو په دغه صورت کې به د حق غلبه نه واضح کيږي، د خوف دغه مطلب د وروستني جواب څخه څرګنديږي.

قُلْنَا لَا تَخَفْ إِنَّكَ أَنتَ الْأَعْلَىٰ ﴿٦٨﴾

ومو ويل (موسی ته) مه ويرېږه ! بېشکه ته چې يې همدا ته يې ډېر غالب.

تفسير: يعنې وېره له خپل زړه څخه وباسه ! او دغسې وسوسې ته په خپل زړه کې ځای مه ورکوه ! الله تعالی خامخا حق ته بری او غلبه ورکوي، او تل يې په ارتقاء او اعتلاء کې ساتي.

وَأَلْقِ مَا فِي يَمِينِكَ تَلْقَفْ مَا صَنَعُوا

او وغورځوه هغه شی چې ښي لاس د تا کې دی، چې له حلق څخه ښکته تېر کړي هغه شيان چې دوی جوړ کړي دي.

تفسير: يعنې خپله همسا په ځمکه وغورځوه ! چې د دوی دغه ګردې کوډې او پلمې يوه نمړۍ او ګوله کړي، او ميدان د دوی له وجوده پاک شي.

إِنَّمَا صَنَعُوا كَيْدُ سَاحِرٍ ۖ وَلَا يُفْلِحُ السَّاحِرُ حَيْثُ أَتَىٰ ﴿٦٩﴾

بېشکه هغه شی چې جوړ کړی دی دوی (او ميدان د مقابلې ته يې حاضر کړی دی) مکر د ساحر دی، او بری نه مومي ساحر (کوډګر) هر چېرته چې راشي (او وي).

تفسير: يعنې د کوډګرانو کوډې، سحر، جادو او نورې پلمې (تدبيرونه) چې څومره دي، او تر هرې اندازې پورې چې ورسيږي، د حق په مقابله کې له سره بری نشي موندلی، او نه پخپله کوډګر چېرې فلاح موندلی شي، نو ځکه په حديث کې د کوډګر د قتل حکم ورکړی شوی دی.

فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجَّدًا قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ هَارُونَ وَمُوسَىٰ ﴿٧٠﴾

پس وغورځول شول کوډګران (نسکور) په دغه حال کې چې سجده کوونکي وو (الله ته) (نو کوډګرانو) وويل: ايمان مو راوړی دی په رب د هارون او موسی.

تفسير: دغه کوډګران چې ډېر فني سړي او د تخصص خاوندان وو، سمدلاسه وپوهېدل چې دغه له سره سحر نشي کېدی، او علی اليقين دغه له سحره د پاسه بل کوم حقيقت او کيفيت لري، نو في الحال د دوی زړونه د ايمان په رڼا سره روښان شول، او د پاک الله د عظمت او قدرت په مقابل کې سر په سجده ولوېدل، دغه قصه د «الأعراف» سورت په ۱۳ رکوع کې ليکلی شوې ده.

قَالَ آمَنتُمْ لَهُ قَبْلَ أَنْ آذَنَ لَكُمْ ۖ إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ الَّذِي عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ ۖ

وويل (فرعون) چې: ايمان راوړو تاسې په ده باندې پخوا له هغه چې اجازه درکړم زه تاسې ته، بېشکه دا موسی چې دی خامخا مشر د تاسې دی هغه چې ښوولی يې ده تاسې ته جادو.

تفسير: يعنې بې ځما له اجازې او حکم صادرولو څخه تاسې ايمان راوړ، او ځما فيصلې ته مو له سره غوږ کېنښود او منتظر نشوئ، نو معلوم شو چې تاسې او موسی عليه السلام پخپلو منځونو کې سره روغه او جوړښت سره کړی دی، او دغه مقابله مو داسې راښکاره شوه، لکه د زرګرانو جنګ چې په دغه سره غواړئ چې عوامّ الناس وغولوئ، لکه چې د «الأعراف» په سورت کې هم مذکور شو.

فَلَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُم مِّنْ خِلَافٍ وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ فِي جُذُوعِ النَّخْلِ وَلَتَعْلَمُنَّ أَيُّنَا أَشَدُّ عَذَابًا وَأَبْقَىٰ ﴿٧١﴾

نو اوس به پرې کړم زه خامخا لاسونه د تاسې، او پښې د تاسې تېروبېر (يعنې ښی لاس او کيڼه پښه - يا کيڼ لاس او ښی پښه)، او خامخا ځوړند به کړم هرومرو تاسې په تنو د خرماوو کې، څو ستاسې د حال د ليدلو څخه ګردو ته پند او عبرت حاصل شي، او خامخا معلوم به کړئ تاسې هرومرو چې کوم يو له مونږ نه ډېر سخت دی له جهته د عذاب، او ډېر پاتې کېدونکی دی (زه که موسی؟).

تفسير: يعنې تاسې پخپل دغه ايمان راوړلو سره داسې راخر ګندوئ چې همدا مونږه منجي يو او نور ګرد خلق به په ابدي عذاب کې اخته او مبتلا کيږي، نو اوس به درمعلوم شي چې د چا عذاب زيات سخت دی، او تر زيات وخت پورې پاتې کېدونکی دی.

قَالُوا لَن نُّؤْثِرَكَ عَلَىٰ مَا جَاءَنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالَّذِي فَطَرَنَا فَاقْضِ مَا أَنتَ قَاضٍ إِنَّمَا تَقْضِي هَٰذِهِ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ﴿٧٢﴾ إِنَّا آمَنَّا بِرَبِّنَا لِيَغْفِرَ لَنَا خَطَايَانَا وَمَا أَكْرَهْتَنَا عَلَيْهِ مِنَ السِّحْرِ وَاللَّهُ خَيْرٌ وَأَبْقَىٰ ﴿٧٣﴾

وويل (کوډګرانو) چې له سره به غوره نه کړو تا په هغه چې راغلی دی مونږ ته له ښکاره وو معجزو، او له هغه (الله) چې پيدا کړي يې يو مونږ، پس وکړه ته هغه کار چې ته يې کوونکی يې، بېشکه همدا خبره ده چې حکم به ورکړې ته په دې ژوندون لږ خسيس (په قتل او نورو تعزيراتو). بېشکه مونږ ايمان راوړی دی په رب خپل، چې وبښي مونږ ته ګناهونه ځمونږ، او هغه چې تا مجبوره کړي يو مونږ په هغه شي باندې له سحره (په مقابل د معجزې کې)، او الله خير غوره دی (له جهته د جزاء ورکولو له تا نه) او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی (عذاب د ده).

تفسير: يعنې مونږ داسې صاف حقّاني دلائل ستا له خاطره نشو پرېښودی، او د خپل حقيقي خالق د خوښی په مقابل کې ستا هيڅ پروا نشو کولی، اوس هر څه چې ستا له لاسه کېدی شي؛ ويې کړه، ستا خو هم دغومره زور رسيږي چې ځمونږ دغه فاني دنيوي ژوندون ختم کړې، ځمونږ ارزو او تمنّا همدا ده چې ځمونږ مالک او مولی له مونږه خوښ او رضاء شي، او ځمونږ ټول ګناهونه خصوصًا همدغه ګناه چې ستا د حکومت له خوفه بالجبر ځمونږ له لاسه صادره شوې ده، «يعنې چې د حق مقابله مو له جادو سره کړې ده»؛ معاف وفرمايي.

إِنَّهُ مَن يَأْتِ رَبَّهُ مُجْرِمًا فَإِنَّ لَهُ جَهَنَّمَ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ﴿٧٤﴾

بېشکه شان دا دی هر څوک چې راشي رب خپل ته کافر (په عقبی کې)؛ پس بېشکه شته ده ته جهنّم دوزخ چې نه به مري په دې دوزخ کې، او نه به ژوندون کوي (د ژوندون په څېر).

تفسير: يعنې انسان لره پکار دي چې اول د آخرت په فکر کې اوسي، او داسې دې ونه کړي چې د مخلوق په اطاعت کې د خالق معصيت وکړي، ځکه چې د داسې مجرمانو د هستوګنې ځای ډېر بد ځای دی، چې له هغه څخه نجات او ژغورنه (بچ کېدنه) په هيڅ يوه صورت سره ممکنه نه ده.

وَمَن يَأْتِهِۦ مُؤْمِنًا قَدْ عَمِلَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلدَّرَجَٰتُ ٱلْعُلَىٰ ۝٧٥ جَنَّٰتُ عَدْنٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ وَذَٰلِكَ جَزَآءُ مَن تَزَكَّىٰ ۝٧٦

او هر څوک چې راشي دغه (الله) ته (په قیامت کې) په دې حال کې چې مؤمن وي، چې په تحقیق کړي یې وي ښه (عملونه په دنیا کې)؛ پس دغه مؤمنان چې دي شته دوی ته مرتبې ډېرې اوچتې. (چې هغه مرتبې) جنتونه دي د (تل) هستوګنې، چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د دوی ویالې، همېشه به وي دوی په دغو (جنتونو) کې، او دغه (درجې او جنتونه) جزاء ده د هغه چا چې ځان یې پاک کړی وي (له خیرو د کفر او له ګناهونو).

وَلَقَدْ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِى فَٱضْرِبْ لَهُمْ طَرِيقًا فِى ٱلْبَحْرِ يَبَسًا لَّا تَخَٰفُ دَرَكًا وَلَا تَخْشَىٰ ۝٧٧ فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ بِجُنُودِهِۦ فَغَشِيَهُم مِّنَ ٱلْيَمِّ مَا غَشِيَهُمْ ۝٧٨

او خامخا په تحقیق وحي کړې وه مونږ موسی ته داسې چې د شپې وباسه (له مصره) بندګان زما (بني اسرائیل)، پس جوړه کړه دوی ته (په وهلو د همسا خپلې سره) لاره په بحر کې وچه، نه به ویرېږې ته په تعقیب (د فرعون له موندلو او نیولو) او نه ویرېږې (له ډوبېدلو). پس راغی په هغو (بني اسرائیلو) پسې (له وروسته) فرعون سره د لښکرو د ده؛ پس لاندې کړل دوی له بحر څخه هغه شیز چې لاندې یې کړل.

تفسیر: کله چې فرعونیانو په میداني مقابله کې ماتې وموندلې، او کوډګران مشرف بالایمان شول، او د بني اسرائیلو ثقل څه دروند شو، او موسی علیه السلام له کلو کلو راهیسې د الله تعالی باهره آیات وروښوول، او هر شان حجّت یې په اتمام ورساوه، خو سره له هغه فرعون دغې خبرې ته تیار او آماده نشو چې حق ومني، یا بني اسرائیلو ته آزادي او خپلواکي ورکړي؛ دلته د الله تعالی داسې حکم پر موسی علیه السلام صادر شو، چې بني اسرائیل له خپله ځانه سره روان کړه ! او د شپې له مخې له مصره هجرت وکړئ !، خو په دغه وسیله سره بني اسرائیل له مظلومیت او غلامۍ څخه نجات ومومي، په لاره کې به سمندر (د قلزم بحیره) حائل کیږي، لیکن تا غونډې د یو اولوالعزم نبي په لاره کې نه ښایي چې سمندر هم حائل شي، کله چې موسی علیه السلام له همدغه هدایت سره سم پر سمندر باندې خپله همسا ووهله، چې په هغه سره اوبه له سره تر بېخه پورې څیرې او دولس کوڅې شوې، او الله تعالی باد ته امر وکړ، چې سمدلاسه دغه ځمکه وچه کړه ! لکه چې آناً فاناً د سمندر بېخ وچه سمه صافه لاره شوه، او په دواړو اطرافو کې د سمندر اوبه لکه چې ډېر لوی لوی غرونه ولاړ وي: ﴿فَٱنفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَٱلطَّوْدِ ٱلْعَظِيمِ﴾ «پس څیرې شو بحر، پس وګرځېده هره ټوټه د اوبو لکه لوی غر»، نو بني اسرائیل پر دغه لاره بې له کومه تکلیف او مشقته تېر شو، وروسته فرعون سره له خپل عظیم الشان فرعوني لښکر د دوی د تعاقب او نیولو لپاره راغلل، او دغه وچه سمه صافه لاره یې لیدلې په بني اسرائیلو پسې هلته ننوتل، څه مهال (وخت) چې بني اسرائیل له سینده بیخي پورې وتل، او فرعون سره له خپله فرعوني لښکره د سیند منځ ته ورسېدل؛ الله تعالی سمندر ته امر ورکړ چې له دواړو خواوو اوبه سره یو ځای کړه ! او فرعون سره له فرعونیانو په خپله غېږ کې ټینګ ونیسه !.

وَأَضَلَّ فِرْعَوْنُ قَوْمَهُۥ وَمَا هَدَىٰ ۝٧٩

او ګمراه کړ فرعون قوم خپل او (ورته یې) ونه ښودله لاره سمه.

تفسیر: یعنې په ژبه سره خو يې ډېرې دعوی کولې چې: ﴿وَمَآ أَهۡدِيكُمۡ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ﴾ ليکن ده خپل قوم ته څرنګه ښه لار وروښوده؟ بېشکه چې فرعون دغه مثال پر فرعونيانو ممثل کړ.

يَٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ قَدۡ أَنجَيۡنَٰكُم مِّنۡ عَدُوِّكُمۡ وَوَٰعَدۡنَٰكُمۡ جَانِبَ ٱلطُّورِ ٱلۡأَيۡمَنَ وَنَزَّلۡنَا عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَنَّ وَٱلسَّلۡوَىٰ ۝٨٠ كُلُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا رَزَقۡنَٰكُمۡ وَلَا تَطۡغَوۡاْ فِيهِ فَيَحِلَّ عَلَيۡكُمۡ غَضَبِيۖ وَمَن يَحۡلِلۡ عَلَيۡهِ غَضَبِي فَقَدۡ هَوَىٰ ۝٨١

(وفرمايل الله چې) ای بني اسرائيلو ! په تحقيق نجات درکړ مونږ تاسې ته له دښمنه د تاسې، او وعده کړې ده مونږ له تاسې سره (په واسطه د موسی) جانب د طور (چې) ښی (جانب دی)، او نازل کړ مونږ پر تاسې من (ترنجبين) او سلوی (وريت کړي مرغان)، خورئ تاسې له طيبو (پاکيزه وو شيانو) هغه چې رزق روزي مونږ درکړې ده تاسې ته، او مه کوئ تجاوز په هغه (مرزوق کې په اسراف، اذخار، بخل او کفران سره)، پس واجب لازم راکوز به شي پر تاسې غضب قهر ځما، او هر څوک چې لازم واجب راکوز شي پر ده غضب ځما؛ پس په تحقيق سخت وغورځېد (په هاويه کې).

تفسیر: په دغه سره الله تعالی بني اسرائيلو ته پند ورکوي چې وګورئ مونږ پر تاسې باندې څرنګه احسانات او انعامات فرمايلي دي، د دغو احساناتو اوانعاماتو په مقابل کې تاسې ته دغه لايق او مناسب وو، چې هغه حلال، طيب، لذيذ، خوندور او پاک شيان چې الله تعالی تاسې ته عنايت فرمايلي دي؛ د هغه استعمال په ډېر شوق او ذوق وکړئ ! او په دغه معامله کې له حده مه تېرېږئ، لکه داسې چې ناشکري او اسراف وکړئ ! يا په دغه فاني تنعماتو کې بيخي محو او ډوب شئ، او د الله تعالی واجبه حقوق اداء نه کړئ، يا دغه د الله تعالی درکړی شوی مال او دولت په مناهيو او معاصيو کې ولګوئ، يا هر چېرې او هر ځای کې چې د تعديل، تأويل، مکر او فرېب څخه ممانعت کړی شوی دی؛ هلته په دغو تأويلاتو، مکر او فرېب پسې مه ګرځئ ! الغرض د الله تعالی درکړي نعمتونه د طغيان او عصيان آله له سره مه ګرځوئ !.

وَإِنِّي لَغَفَّارٞ لِّمَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحٗا ثُمَّ ٱهۡتَدَىٰ ۝٨٢

او خامخا زه هرومرو ښه مغفرت کوونکی يم هغه چا ته چې توبه يې وويسته (له شرکه) او ايمان يې راوړ (په ټولو مؤمن به شيانو)، او نېک عمل يې وکړ، او بيا (په همدغه سمه صافه لار تر مرګه) مستقيم پاتې شو.

تفسیر: د مغضوبينو په مقابل کې دغه د مغفورينو بيان وشو،يعنې هومره چې لوی مجرم وي، که د زړه په صدق سره تائب شي، او د ايمان او صالح عمل لاره ځان ته غوره کړي، او پر همدغه د ايمان پر سمه صافه لاره تر مرګه پورې مستقيم پاتې شي؛ نو د الله تعالی په دربار کې د مغفرت او د رحمت هيڅ کمی او تقليل نشته.

وَمَآ أَعۡجَلَكَ عَن قَوۡمِكَ يَٰمُوسَىٰ ۝٨٣ قَالَ هُمۡ أُوْلَآءِ عَلَىٰٓ أَثَرِي وَعَجِلۡتُ إِلَيۡكَ رَبِّ لِتَرۡضَىٰ ۝٨٤

او څه شي راګړندی کړې ته (چې ړومبی راغلې) له قومه خپله ای موسی !. وويل (موسی) دوی دغه دي (روان دي) راپسې ورروسته ځما (را روان دي)، او جلتې مې وکړه تاته (په راتلو کې) ای ربه ځما لپاره د دې چې راضي شې ته (له ما نه).

تفسیر: موسی علیه السلام حسب الوعده په ډېره مینه او اشتیاق سره «طور» ته ورسېد، ښايي چې داسې حکم هم پرې شوی وي؛ چې د خپل قوم ځینې مشران او غټان هم له خپله ځانه سره راوله، او هغوی به ترې لږ څه وروسته پاتې شوي وي، او موسی علیه السلام به په ډېر شوق او ذوق سره مخ کې وړاندې تللی وي، نو الله تعالی وفرمایل: ای موسی ! دومره ګړندی ولې راغلې؟ او خپل قوم او ملګري دې ولې وروسته پرېښودل؟ عرض یې وکړ چې ای رب العالمینه ! ستا د خوښۍ او رضاء لپاره ډېر ژر حاضر شوم، او قوم هم دومره له ما ځنې لرې نه دی، دغه دی راپسې راځي، کذا في التفاسیر، ویحتمل غیر ذلک، والله أعلم.

قَالَ فَإِنَّا قَدْ فَتَنَّا قَوْمَكَ مِنْ بَعْدِكَ وَأَضَلَّهُمُ السَّامِرِيُّ ﴿٨٥﴾

وفرمایل (الله) پس بېشکه مونږ چې یو په تحقیق ومو ازمویه قوم د تا وروسته له (راتللو ستا)، او ګمراه کړل دوی سامري (په عبادت د خُسي سره).

تفسیر: یعني ته دلته راغلې، او ما ستا قوم په یو ډېر سخت امتحان کې غورځولی دی، چې د هغه سبب په عالم أسباب کې سامري ګرځېدلی دی، ځکه چې د هغه په اضلال او اغواء سره بني اسرائیلو د موسی علیه السلام په غیاب کې د خُسي په عبادت لاس پورې کړ، چې د هغه قصه د «الأعراف» سورت په (۱۸) رکوع کې هم تېره شوې ده.

فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ أَلَمْ يَعِدْكُمْ رَبُّكُمْ وَعْدًا حَسَنًا ۚ أَفَطَالَ عَلَيْكُمُ الْعَهْدُ أَمْ أَرَدْتُمْ أَنْ يَحِلَّ عَلَيْكُمْ غَضَبٌ مِنْ رَبِّكُمْ فَأَخْلَفْتُمْ مَوْعِدِي ﴿٨٦﴾

پس راوګرځېد موسی قوم خپل ته ډېر غضبناک خورا غمجن، وویل (موسی) ای قومه ځما ! آیا وعده نه وه کړې له تاسې سره رب د تاسې وعده حسنه (نېکه ښه د ورکولو د تورات)؟، آیا پس اوږده شوه پر تاسې زمانه (د بیلتون ځما)؟، او که اراده کړې وه تاسې چې لازم واجب راکوز شي پر تاسې غضب قهر له جانبه د رب د تاسې؛ پس وعده خلافي وکړه تاسې له ما سره؟.

تفسیر: یعنې ځما په متابعت کې تاسې ته د دیني او دنیوي هر قسم نېکۍ دررسیږي، لکه چې ډېره عظیم الشأنه نیکي همدا اوس تاسې پخپلو سترګو سره ولیدله، او هغه څه چې باقي دي؛ هغه عنقریب دررسیږي، آیا له دغې وعدې څخه ډېر زیات مدّت تېر شوی دی؟ چې تاسې دغه تېر ګرد احسانات هېر کړل، او د وروستنیو انعاماتو له ډېر انتظار کولو څخه ستړي ستومان شوئ؟ یا عمدًا او په لوی لاس مو له ما سره وعده خلافي وکړه؟ او د توحید پر دین قائم پاتې نشوئ؟ او د الله تعالی غضب مو ځان ته غوره کړ (کذا فسره الحافظ ابن کثیر رحمه الله).

قَالُوا مَا أَخْلَفْنَا مَوْعِدَكَ بِمَلْكِنَا وَلَٰكِنَّا حُمِّلْنَا أَوْزَارًا مِنْ زِينَةِ الْقَوْمِ فَقَذَفْنَاهَا فَكَذَٰلِكَ أَلْقَى السَّامِرِيُّ ﴿٨٧﴾

وویل (بني اسرائیلو) چې نه مو دی کړې خلاف د وعدې د تا په اختیار خپل سره، ولیکن مونږ بار کړی شوي یو په پېټو له ګاڼو (زېوراتو) او کالیو (کپړو) د قبطیانو د قوم، پس ومو غورځولې هغه (ګاڼې په اور کې)، او همداسې وغورځولې (ګاڼې په اور کې) سامري.

تفسیر: یعني مونږ پخپل اختیار او په خپل سر داسې حرکت نه دی کړی، په دغه حرکت باندې مونږ د «سامري» په تحریک او لار ښوونه سره اقدام کړی دی، صورت یې داسې وو چې د فرعونیانو د ګاڼو او کالیو (جامو) هغه بار چې ځمونږ په اوږو بار وو؛ مونږ نه پوهېدلو چې له هغه سره څه معامله وکړو، نو پخپلو منځونو کې مو مشوره سره وکړه، او وروسته له هغه مو داسې غوټه کړه، چې هغه هیسته وغورځوو، نو «سامري هغه زېورات واخیستل، او په اور کې یې

ويلي كړل، او له هغه څخه يې د خُسي تصوير جوړ كړ، او هغه يې راودراوه، دغه قصه د «الأعراف» په سورت كې هم تېره شوې ده، هلته دې ولوستل شي.

تنبيه: د فرعونيانو ګاڼې څرنګه د بني اسرائيلو په لاس ورغلې وې؟ يا به يې هغه له دوی نه مستعار اخيستې وې، يا د غنيمت د مال په ډول به دوی ته په لاس ورغلې وې، يا به بل كوم صورت لري، په دې كې د مفسّرينو اختلاف دی.

فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَّهُۥ خُوَارٌ فَقَالُوا۟ هَٰذَآ إِلَٰهُكُمْ وَإِلَٰهُ مُوسَىٰ فَنَسِىَ ﴿٨٨﴾

نو (يې) راوويست دوی ته (له هغه خندق څخه) يو خُسی يو جسد چې وو ده ته غږ، نو وويل (سامري او تابعانو يې) دغه د تاسې معبود دی او معبود د موسی دی، پس هېر كړی دی ده (خپل إِلٰـه دلته او طور ته تللی دی).

تفسير: يعنې د موسی عليه السلام څخه هېر شوي دي چې د الله تعالی سره د خبرې كولو لپاره طور ته تللی دی، الله خو دلته موجود دی، يعنې همدغه خُسی دی (العياذ بالله)، ښايي دغه خبره به د دغو يهودانو وي چې په دوی كې سخت غالبان وو.

أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ﴿٨٩﴾

(نو فرمايي الله) آيا نه ګوري دوی بېشكه شان دا دی چې بېرته نه ګرځوي دا (خُسی) دوی ته خبره، او نه مالك دی دوی ته د ضرر (د دفع كولو)، او نه د نفعې (د رسولو).

تفسير: يعنې دغه ړانده په دغومره غټه خبره هم ونه پوهېدل، چې دغه بُت چې نه له چا سره خبرې كولی شي، نه چاته لږ څه نفع رسولی شي، او نه د څه نقصان رسولو اختيار لري، هغه څنګه معبود كېدی شي؟.

وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَٰرُونُ مِن قَبْلُ يَٰقَوْمِ إِنَّمَا فُتِنتُم بِهِۦ ۖ وَإِنَّ رَبَّكُمُ ٱلرَّحْمَٰنُ فَٱتَّبِعُونِى وَأَطِيعُوٓا۟ أَمْرِى ﴿٩٠﴾

او خامخا په تحقيق وويل دوی ته هارون پخوا (له راتللو د موسی نه له طوره) ای قومه څما ! بېشكه همدا خبره ده چې ازمويلي شوي يئ تاسې په (عبادت) د خُسي، او بېشكه رب د تاسې همدا «رحمان» دی (نه بل څوك)، نو متابعت وكړئ څما او اطاعت وكړئ د حكم څما.

تفسير: يعنې هارون عليه السلام په پسته ژبه سره دوی پوهولي وو، چې پر دغه خُسي تاسې غوليدلي يئ، دا له سره ستاسې معبود نشي كېدی، ستاسې معبود يواځې رحمن دی، زه د موسی عليه السلام خليفه يم، او بالذات پخپله هم د نبوّت خاوند يم، كه خپله ښېګڼه (فايده) غواړئ؛ نو پر تاسې لازم دي چې څما په طريقه او لاره لاړ شئ، اوڅما خبره ومنئ، او د سامري په ټګی مه خطا وځئ، چې هغه مو اغواء كوي، او له لارې مو وباسي.

قَالُوا۟ لَن نَّبْرَحَ عَلَيْهِ عَٰكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ ﴿٩١﴾

وويل (بني اسرائيلو چې:) همېشه به اوسو په (عبادت د) دې خُسي محكم ولاړ تر هغه پورې چې بېرته راشي مونږ ته موسی (له طوره).

قَالَ يَٰهَٰرُونُ مَا مَنَعَكَ إِذْ رَأَيْتَهُمْ ضَلُّوٓا۟ ﴿٩٢﴾ أَلَّا تَتَّبِعَنِ ۖ أَفَعَصَيْتَ أَمْرِى ﴿٩٣﴾

وويل موسی (پس لـه راتګـه خپله لـه طوره): ای هارونـه ! څه شي منع كـړی وې ته كله چې تا وليدل دوی چې ګمراهان شول له دې چې متابعت دې ونه كړ (د حكم) څما، آيا پس نافرماني وكړه تا له حكمه څما؟.

تفسير: يعنې ما ته خپل خليفه درولی وې، او حکم مې درکړی وو چې څما په غياب کې د دوی اصلاح کوه، او د مفسدانو په لاره مه ځه، نو بيا تا څه اصلاح وکړه؟ الغرض تا د داسې صريحې ګمراهی له ليدلو سره ولې څما د اصولو او طريقې متابعت ونه کړ؟.

قَالَ يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي وَلَا بِرَأْسِي

وويل (هارون): ای ځويه د مور څما ! مه نيسه ږيره څما او نه (ويښتان د) سر څما.

تفسير: موسی عليه السلام له ډېره قهره او سختې غوسې هارون عليه السلام يې له ږيرې او د سر له ويښتانو څخه کلک نيولی وو، د دې مفصّله قصه د «الأعراف» په (۱۸ رکوع) کې تېره شوې ده، د هغه په فوائدو کې دې ولوستله شي.

إِنِّي خَشِيتُ أَن تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَاءِيلَ وَلَمْ تَرْقُبْ قَوْلِي ﴿٩٤﴾

بېشکه زه وويرېدم له دې نه چې وبه وايې ته (راته) چې بېلتون دې واچاوه په منځ د بني اسرائيلو کې (که چېرې ما جنګ کړی وی)، او ودې نه کتل امر څما ته.

تفسير: يعنې څما په فکر کې همدغه خبره راغله چې ستا د راتګ انتظار له دې نه بهتر دی چې زه ستاسې په غياب کې کوم کار وکړم، چې د هغه لامله به په بني اسرائيلو کې شقاق او نفاق واقع شي، څکه ظاهر دی که مقابله يا انقطاع کېده؛ نو څه خلق به له ما سره کېدل، او ډېر کسان به مخالف کېدل، نو زه له دې ويرېدم چې ته د خپل راتګ په وخت کې دغه الزام په ما وانه ړوې چې څما د راتګ انتظار دې ولې ونه کړ؟ او په قوم کې دې ولې داسې تفرقه وغورځوله.

قَالَ فَمَا خَطْبُكَ يَسَامِرِيُّ ﴿٩٥﴾

وويل (موسی) پس څه وه ستا کار ای سامري ! (چې خلق دې ګمراه کړل).

تفسير: يعنې موسی عليه السلام د هارون عليه السلام د جواب او سوال څخه وروسته (سامري) يې تر قهر او عتاب لاندې ونيو، او ترې لازمه پوښتنې يې شروع کړې، او ويې ويل چې: ته دې په رښتيا خپل حقيقت بيان کړه ! دغه حرکت دې د څه لامله کاوه، او بنا پر کومو اسبابو او عواملو بني اسرائيل ستا په لوري بې لارې او ګمراه شول؟.

قَالَ بَصُرْتُ بِمَا لَمْ يَبْصُرُوا بِهِ فَقَبَضْتُ قَبْضَةً مِّنْ أَثَرِ الرَّسُولِ فَنَبَذْتُهَا وَكَذَٰلِكَ سَوَّلَتْ لِي نَفْسِي ﴿٩٦﴾

وويل (سامري) چې نظر غورځولی وو ما په هغه شي باندې چې نظر نه وو غورځولی دوی په هغه شي باندې، پس واخيستله ما يو موټی (خاوره) له قدمه د (آس د) رسول (جبرئيل)، پس ومې غورځوله دا (خاوره په خوله ددې خُسي کې نو پر غرېدو سو)، او همداسې ښايسته کړی وو ماته (دا کار) نفس څما.

تفسير: سامري وويل چې: «څما نظر پر داسې يو شي ولوېد، چې د نورو فهم هغه ته ونشو، يعنې ما د الله تعالی ليږلی ملک ـ پرښته (جبرئيل) پر آس سور وليد، او د ده د پښو يا د ده د آس د سوو له خاورو څخه مې يو موټی خاوره واخيسته، او بيا هم هغه مې د خُسي د سرو زرو په مجسمه کې ورتوی کړی»، د سامري په زړه کې دغه فکر راغلی وو، چې د روح القدس د پښو خاورو کې به هرومرو څه نه څه تأثير وي.

تنبيه: د دې آيت کوم تفسير چې پاس بيان شوی دی، له کرامو صحابه وو، تابعينو او مفسرينو علماوو څخه همدغه منقول دی، څينو زائغينو چې پر دې باندې طعن کړی دی، او د آيت لرې له صوابه تأويلات يې کړي دي، د هغه کافي جواب د «روح المعاني» خاوند ورکړی دی، دلته د دومره بسط موقع نه ده، من شاء فليراجع.

قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيٰوةِ أَنْ تَقُوْلَ لَا مِسَاسَ

وويل (موسى): پس ځه (له مونږه لرې شه !) پس بېشکه شته تاته په دغه ژوندون کې دا (عاقبت) چې وبه وايې (هر چاته چې ويې ويني) چې مه لګېږه (په ما).

تفسير: يعنې ماته دې لاس مه راوړاندې کوه ! او مه راسره نژدې کېږه ! او بيخي لرې او جلا راځخه ګرځه !، کله چې «سامري» د خُسي لوبه او ننداره يې د دې لامله جوړه کړې وه، چې د لويي، رياست، او جاه خاوند شي، او خلق له ده سره ملګري شي، او دی د خپل مشر او سردار په توګه ومني؛ نو ځکه هغه ته په دغه صورت سره مناسبه او کافي سزا ورکړه شوه، چې هيڅوک دې له ده سره نه نژدې کيږي، بلکه سامري په دې مأمور او مجبور شو، چې وداني ځخه لرې په صحراء او بيديا کې لکه يو ذليل ځنګلي او وحشي ځناور اوسيږي، او له سره دی د خلقو سره نه يو ځای کيږي.

وَإِنَّ لَكَ مَوْعِدًا لَّنْ تُخْلَفَهٗ

او بېشکه تاته (ده په آخرت کې) وعده (د عذاب) چې له سره به خلاف ونه کړ شي له تا سره له هغې وعدې ځخه.

تفسير: دا يې چې فرمايلي دي، چې دا يوه داسې وعده ده چې له سره ترې نه مخالف کيږي؛ ښايي ترې اخروي عذاب مراد وي.

وَانْظُرْ إِلٰى إِلٰهِكَ الَّذِيْ ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَّنُحَرِّقَنَّهٗ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهٗ فِي الْيَمِّ نَسْفًا ﴿۹۷﴾

او وګوره معبود خپل ته دې هغه چې وې ته په عبادت د هغه کې محکم ولاړ (چې خُسی دی)؛ خامخا سوځوو مونږ هرومرو هغه، بيا به يې بادوو، تار په تار کوو په سيند کې په بادولو، تار په تار کولو سره.

تفسير: يعنې ستا سزا خو همدا شوه، اوس ستا هغه خُسی چې تا معبود درولی وو، او بيا دې پرې زړه بايللی وو، او ورته ناست وې، اوس يې ستا تر سترګو لاندې ټوټې ټوټې او ټکر ټکر کوم، او بيا يې په سخت اور کې سوځوم، او بيا يې ايره هم د سيند په هوا کې دوړوم، څو دې عابدانو او مينانو ته دغه خبره ښه واضحه او ښکاره شي چې دغو نورو ته به څه سود او زيان ورسوي؟ حال دا چې دی خپل د ځان ساتنه او حفاظت هم نشي کولی.

إِنَّمَا إِلٰهُكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ وَسِعَ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿۹۸﴾

بېشکه همدا خبره ده چې معبود ستاسې (چې مستحق د عبادت دی)؛ الله دی هغه چې نشته بل معبود مستحق د عبادت مګر هم دی دی، چې محيط دی دی پر هر څيز له جهته د علم.

تفسير: د باطلو له لرې کولو او امحاء سره به موسى عليه السلام خپل قوم ته د حق په طرف دعوت کاوه، او داسې به يې ورته ويل چې: خسی څه شی دی؟ هيڅ يو شی دی، چې د بر لوی هم وي له سره معبود کېدی نشي، رښتين او حقيقي معبود خو هغه يو ذات دی چې ماسوا له هغه ځخه د بل هيچا عبادت عقلاً، نقلاً او فطرتاً نه دی جائز، او د هغه لا محدود علم هرې يوې ذرې لره هم محيط دی.

كَذٰلِكَ نَقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ اَنْبَآءِ مَا قَدْ سَبَقَ

همداسې (لکه چې د موسی قصه مو وکړه تاته؛) قصې کوو پر تا (يعنې تاته) له اخبارو د هغو امورو چې په تحقيق پخوا تېر شوي دي (له پخوانيو امتو)،

تفسير: يعنې د موسی عليه السلام او د فرعون او د هغو د اقوامو د قصې په شان د ډېرو نورو پخوانيو اقوامو واقعات هم مونږ تاته او ستا په وسيله ګردې دنيا ته اوروو، چې په هغو کې ډېرې فائدې او د تشويق او ترغيب او ترهيب وسائل او وسائط شته، مثلاً د علم توفير، د معجزاتو تکثير، د انبياوو او د مسلمينو تسلي او ډاډينه، د عقلمندانو عبرت او تذکير، او د معاندانو په حق کې تهديد او ترهيب، وغير ذلک من الفوائد.

وَقَدْ اٰتَيْنٰكَ مِنْ لَّدُنَّا ذِكْرًا ﴿۹۹﴾

او په تحقيق درکړی دی مونږ تاته خاص له جانبه خپله ذکر (پند چې قرآن دی).

تفسير: يعنې قرآن عظيم الشأن مو درکړی دی، چې پر دغو عبرت ښوونکو واقعاتو باندې مشتمل دی.

مَنْ اَعْرَضَ عَنْهُ فَاِنَّهٗ يَحْمِلُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وِزْرًا ﴿۱۰۰﴾ خٰلِدِيْنَ فِيْهِ وَسَآءَ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ حِمْلًا ﴿۱۰۱﴾

هر څوک چې مخ وګرځوي له دغه (قرآن يا له الله نه په نه ايمان راوړلو سره)؛ پس بېشکه دی به بار کړي (په ځان خپل) په ورځ د قيامت کې لوی بار (د عذاب). چې تل به وي په دغه (عذاب) کې، او بد دی دوی ته په ورځ د قيامت کې له جهته د بارولو.

تفسير: يعنې له اعراض او تکذيب د ګناهونو کوم بار چې پر دوی باندې بارېږي؛ له سره به نه سپکېږي، دوی به همېشه تر هغه لاندې وي، بيا د هغه پورته کول کوم د خندا او مسخرې خبره نه ده، څه وخت چې دوی دغه د عذاب بد او سخت درانه پيټي پورته کوي؛ نو هلته پوهېږي چې دوی څومره تر يوه درانه پيټي لاندې کېوتلي دي؟.

يَّوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ وَنَحْشُرُ الْمُجْرِمِيْنَ يَوْمَئِذٍ زُرْقًا ﴿۱۰۲﴾

په هغه ورځ کې چې وپوکل شي (دويم ځلي) په صور (شپېلی) کې، او راجمع به کړو مجرمان (کافران) په دغه ورځ شين سترګي.

تفسير: يعنې د محشر د راوستلو په وخت کې به ړانده وي، يا ښايي همداسې د هغوی سترګې به شنې وي، چې د خلقو په نظر ښکاره شي، په هر حال که ړومبی معنی واخيستله شي؛ نو دغه د يوه خاص وخت ذکر دی، بيا به سترګې وپرانستلې شي، څو دوزخ او نور ووينې: ﴿وَرَاَ الْمُجْرِمُوْنَ النَّارَ﴾ الآية ـ (۱۵ جزء د الکهف سورت (۵۳) آيت (۷) رکوع). ﴿اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ يَوْمَ يَاْتُوْنَنَا﴾ الآية ـ (۱۶ جزء، د مريم سورت (۳۸) آيت، (۲) رکوع).

يَّتَخَافَتُوْنَ بَيْنَهُمْ اِنْ لَّبِثْتُمْ اِلَّا عَشْرًا ﴿۱۰۳﴾

چې ورو ورو پټې پټې خبرې به کوي په منځ خپل کې (او داسې به وايي چې) درنګ نه دی کړی تاسې مګر لس (ورځې په دنيا کې).

تفسير: يعنې دوی چې له قبره ووځي، او د آخرت د ورځې هولناک واقعات وګوري، او دغه اوږده ورځ ووينې؛ نو د قبر شپې ورته دومره لږې ښکاري چې ته به وايي يوه هفته يا لس ورځې يې هلته تېرې کړې دي، بلکه دنيا ډېر ژر

پرې تېره شوې ده، د دې دنيا مزې او خوندونه او اوږده اميدونه يې ګرد هيرېږي، د خپل عمر په خوشې ضايع كېدلو به ندامت كوي.

نَّحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ إِذْ يَقُولُ أَمْثَلُهُمْ طَرِيقَةً إِن لَّبِثْتُمْ إِلَّا يَوْمًا ﴿١٠٤﴾

مونږ ښه عالمان يو په هغو اقوالو چې دوى يې وايي، كله چې وايي ډېر كامل د دوى له حيثه د روش (چې فكر او عمل دى) چې: ځنډ (تأخير) نه دى كړى تاسې (په دنيا كې) مګر يوه ورځ.

تفسير: يعني هغه چې د دوى په منځ كې زيات عقلمن، هوښيار او صائب الرأي وي، هغه به وايي: خانه ! لس ورځې؟ ! نه، لس ورځې څېرې؟ يوائې يوه ورځ يې وګڼه ! ده ته يې زيات عقلمن او د ښې طريقې خاوند ځكه وويل چې: دى به د دنيا پـه زوال او فنـاء، او د آخرت په دوام او بقاء، او د هول په شدّت او نورو شيانو له نورو څخه ښه پوهېدلى وي.

وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ﴿١٠٥﴾ فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ﴿١٠٦﴾ لَّا تَرَىٰ فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا ﴿١٠٧﴾

او پوښتنه كوي له تا نه له (احواله د) غرونو (چې د دوى به څه احوال وي په ورځې د قيامت كې؟) پس ووايه دوى ته: تار په تار او تيت او پرک به كړي دغه (غرونه په شان د غبار) رب ځما په تار په تار كولو سره. پس پرې به ږدي دا ځمكه يو تش ډاګ هوار. چې نه به وينې ته په دغه (ځمكه) كې ښكته والى او نه اوچت والى.

تفسير: يعني د قيامت پر ذكر به د حشر منكرين د استهزاء په ډول وايي، چې د داسې سختو عظيم الشأنو غرونو حال احوال به څرنګه كيږي؟ آيا دغه به هم ټوټې ټوټې كيږي؟ د دوى په ځواب كې داسې ووايئ ! چې هو ! دالله تعالى د لامحدوده قدرت په مقابل كې غرونه څه عظمت او حقيقت لري؟ ! دغه غرونه هم په لږ وخت كې خاورې ايرې كيږي، او د غرونو ذرات او پڅركي د ټكول شويو وړيو په شان په هوا كې الوځولى كيږي، او ځمكه به بيخي صافه او هوارېږي، چې له سره به هيڅ لوړه او ژوره نه په كې ليدله كيږي، او د غرونو موانع او سدود بيخي له منځه ورک، صاف او پاكيږي.

يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ

په دغه ورځ (د قيامت) كې به متابعت وكړي (دا مخلوق د بلنې) د بلونكي، نه به وي كوږوالى له دغې (بلنې د بلونكې څخه).

تفسير: يعني هر څېرې چې پرښته غږ وكړي، او هر څېرې يې چې ورغږ كړي؛ ګرد خلق به سم برابر د غشي او د مردكي په شان هملته ورځغلي، نه به د غږ كوونكي په غږ كې څه كوږوالى وي، او نه د دغو منډو وهونكو په منډو، ورتګ او ځغاسته كې به څه كوږوالى او وړاندې وروسته ليدل كيږي.

وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَٰنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا ﴿١٠٨﴾

او چپ به شي غږونه (له ډېره هيبته) لپاره د رحمان، پس نه به اورې ته مګر كشارى د قدمونو.

تفسير: يعني د محشر د ورتګ په وخت كې پرته د پښو د كښهار او د ورو غږه بل هيڅ يو غږ او آواز نه اورېده كيږي، او د الله تعالى د خوف او هيبت لامله بل هيڅ يو غږ او غوږ به نه وي، كه څوک څه وايي هم، خو دغومره ورو ورو به يې وايي چې ايله به يې شونډې خوځيږي، او بل هيڅ شى ترې نه څرګنديږي (ښكاره كيږي).

يَوْمَئِذٍ لَّا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَٰنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا ﴿١٠٩﴾

په دغه ورځ (قيامت) کې نه رسوي فائده شفاعت (هيچا ته) مګر هغه چاته چې اذن کړی وي د هغه په حق کې رحمان (چې شفاعت يې وکړ شي)، او راضي وي (الله) له دغه (مشفوع شخه) له حيثيته د وينا.

تفسير: يعني د هغه چا سپارش چليږي چې ورته د الله له طرفه د سپارش اجازت ورکړی شوی وي، د هغه شافع وينا د پاک الله خوښه وي، او خورا ښې خبرې يې ويلي وي، او د داسې سړي سپارش وکړي چې د هغه مشفوع خبره ﴿لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ﴾ د پاک الله په نزد خوښه او پسنده شوي وي، د کفّارو په حق کې د هيچا سعي او سپارش له سره په درد نه خوري او نه چليږي.

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴿١١٠﴾

عالم دی الله په هر هغه څه چې په مخکې کې د دوی وي (له اخروي امورو)، او هر هغه څيز چې پسي شا د دوی دی (د دنيوي امورو)، او نه به شي احاطه کولی دوی په (ذات او په معلوماتو) د دغه (الله) له جهته د علم.

تفسير: يعني د الله تعالی علم پر ګردو محيط دی، ليکن د بندګانو علم پر الله تعالی يا د الله تعالی پر معلوماتو محيط او چاپېر نه دی، نو ځکه همده ته پخپل محيط علم معلوم دي چې چاته د چا د شفاعت لپاره ښايي موقع ورکړه شي.

وَعَنَتِ الْوُجُوهُ لِلْحَيِّ الْقَيُّومِ ۖ

او ذليل به شي مخونه لپاره د تل ژوندي قائم تدبير والا د عالَمو ته.

تفسير: يعني په دغه ورځ کې به د هغو لويو لويو سرکښو متکبرانو سرونه هم په ښکاره ډول سره د دغه حي او قيّوم الله په دربار کې د ډېرو ذليلو او سپکو بنديانو په شان ښکته او پټ کيږي، چې هغوی پخوا له دې نه له سره د الله تعالی په مقابل کې خپل سرونه نه وو ټيټ کړي، په دغه وخت کې به په ډېرې عاجزۍ سره خپلې غاړې ږدي.

وَقَدْ خَابَ مَنْ حَمَلَ ظُلْمًا ﴿١١١﴾

او په تحقيق خراب نااميده شو هر هغه څوک چې پورته يې کړ بار د ظلم.

تفسير: يعني د ظالمانو له حاله بيخي پوښتنې مه کوه چې څنګه خراب به وي !، د ظلم په لفظ کې شرک او نور معاصي هم داخل دي، لکه چې د لقمان د سورت د (۲) رکوع (۱۳) آيت (۲۱) جزء کې راغلي دي: ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾ او د (۴) جزء د آل عمران سورت په (۱۳۵) آيت (۱۴) رکوع کې لولو: ﴿وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا فَاحِشَةً أَوْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ﴾ ـ د هر يوه ظالم خرابي به د ده ظلم له درجې سره موافقه وي.

وَمَن يَعْمَلْ مِنَ الصَّالِحَاتِ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَا يَخَافُ ظُلْمًا وَلَا هَضْمًا ﴿١١٢﴾

او هر څوک چې وکړي له ښو (عملونو)، حال دا چې وي دی مؤمن؛ پس نه به ويريږي (دی په آخرت کې) له ظلم، بې انصافی او نه له نقصان.

وَكَذٰلِكَ أَنزَلْنٰهُ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا وَصَرَّفْنَا فِيهِ مِنَ الْوَعِيدِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ أَوْ يُحْدِثُ لَهُمْ ذِكْرًا ﴿۱۱۳﴾

او همداسې (لکه چې قصه مو وکړه د انبیاوو او پخواني امتونو او د قیامت؛) نازل کړی دی مونږ دغه کتاب قرآن په عربي (ژبه)، او بیا بیا مو راوړي دي مونږ په دې قرآن کې له آیتونو د وعید لپاره د دې چې دوی پرهېز وکړي، یا پیدا کړي دغه (قرآن) دوی ته ذکر (پند او ترې عبرت واخلي).

تفسیر: یعنې لکه چې دلته د محشر احوال او د هغه د نېکو او بدو نتائج صاف صاف اوروولی شوي دي؛ همداسې مونږ پوره قرآن په صافې عربي ژبې سره نازل کړی دی، څو هغه خلق چې د ده ړومبني مخاطبان دي د هغه له لوستلو له الله تعالی څخه ووېرېږي، او د تقوی لار غوره کړي، او سمدلاسه داسې ونشي؛ نو اقلاً د دوی په زړونو کې د عاقبت او انجام څه فکر، غور او اندېښنه خو پیدا شي، ممکن دی چې همدغه غور او فکر ورو ورو ترقي او تزييد ومومي، او دوی د هدایت په لاره راولي، او د دوی په وسیلو نورو ته هدایت ور په برخه شي.

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۗ وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْءَانِ مِن قَبْلِ أَن يُقْضٰىٓ إِلَيْكَ وَحْيُهُۥ ۖ وَقُل رَّبِّ زِدْنِى عِلْمًا ﴿۱۱۴﴾

نو لوی اوچت دی الله (په ذات او صفاتو خپلو کې له ټولو عیبونو او نقصانونو) چې پادشاه دی، حق دی، او تلوار مه کوه ته (ای محمده !) په (لوستلو د) قرآن پخوا له هغه چې پوره کړه شي تا ته وحي د ده، او ووایه (ای محمده !): ای ربه څما ! زیات کړې ما له جهته د علمه !.

تفسیر: یعنې هر کله چې پاک قرآن داسې مفید او عجیب څیز دی؛ نو هم هغسې چې مونږ هغه په تدریج ورو ورو پر تا نازلوو، ته هم د هغه په اخیستلو کې له جبرئیل علیه السلام څخه تلوار او جلتي مه کوه ! څه مهال چې پرښته وحي در اوروي؛ ته یې په عجلت له هغې سره مه لوله ! ځکه چې مونږ د دغې خبرې عهد او پیمان درسره کړی دی، چې نه به پرېږدو عظیم الشأن قرآن چې د تا له سیني څخه ووځي، نو ته ولې په دغه فکر او اندېښنه کې ځان ربړوې (تکلیف ورکوې)؟؛ نه چې د پاک قرآن کوم توری له ما څخه هېر شي، بلکه د دغه فکر په ځای داسې دعاء وکړه چې ای الله تعالی ! د قرآن لا زیاته پوهه او له حده زیات علوم او معارف راته عطاء کړه !.

وَلَقَدْ عَهِدْنَآ إِلٰىٓ ءَادَمَ مِن قَبْلُ فَنَسِىَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا ﴿۱۱۵﴾

او خامخا په تحقیق حکم کړی وو مونږ آدم ته پخوا له دې نه، پس هېر یې کړ (هغه حکم)، او ومو نه موند ده ته استقامت (صبر له منهيٌ عنه) څخه.

تفسیر: هغه دا چې دانه یې خوړلې وه، او د مخه حکم یې هېر کړی وو، یعنې قائم پاتې نه شو، وروسته له دې د دغې قصې لږ تفصیل راځي.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوا لِءَادَمَ فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ أَبٰى ﴿۱۱۶﴾ فَقُلْنَا يٰٓـَٔادَمُ إِنَّ هٰذَا عَدُوٌّ لَّكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقٰىٓ ﴿۱۱۷﴾

او یاد کړه هغه وخت چې وویل مونږ پرښتو ته چې: سجده وکړئ (تعظیمًا) آدم ته، پس سجده وکړه (ټولو) مګر (سجده ونه کړه) ابلیس؛ چې منع یې راوړه، پس وویل مونږ: ای آدمه ! بېشکه دا (ابلیس) دښمن ستا دی او (دښمن) د ښځې ستا دی، پس خبردار ! ودې نه باسي خامخا تاسې له جنته (په سبب د وسوسې او فرېب) پس په مشقّت کې به پرېوځئ.

تفسیر: ظاهر دی چې د جنت آرامي او هوسايي (خوشالي) په بل کوم ځای کې میسّر کېدی نشي، او پرته له جنته پر هر ځای کې د خوړلو او ځښلو، اغوستلو او نورو ضروریاتو تدابیرو ته خامخا انسان ربړ ګالي، او مشقّت پر ځان اخلي.

إِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَىٰ ﴿١١٨﴾ وَأَنَّكَ لَا تَظْمَؤُا فِيهَا وَلَا تَضْحَىٰ ﴿١١٩﴾

بېشکه مقرر دی تاته چې نه به وږی کېږې په دې (جنّت) کې، او نه به بربنډ کېږې. او بېشکه ته به نه تږی کېږې په دغه جنت کې، او نه به دې ګرمي کیږي.

تفسیر: د انساني له مهمو ضروریاتو څخه خوړل، ځښل، اغوستل او د هستوګنې داسې ځای دی چې سړی په کې له لمر، باران، باد او نورو اضرارو څخه مأمون او مصئون وي، په جنّت کې داسې تکالیف له سره نشته، او په جنّت کې له هر حیث او هر جهت څخه آرامي، راحت، طمأنیت، امنیت، سکون او نور ګرد په زړه پورې وسائل او وسائط شته، دلته یې د راحت ذکر ونه فرمایه، یواځې یې د تکالیفو له نفي کولو څخه ښایي داسې تنبیه او ایقاظ مقصود وي، چې د جنّت د وتلو څخه وروسته تاسې له دغو ګردو شیانو سره مخامخ کېدونکي او د دغو ګردو ربړو ګالونکي (تکلیفونو برداشت کوونکي) یئ!.

فَوَسْوَسَ إِلَيْهِ الشَّيْطَٰنُ قَالَ يَٰٓـَٔادَمُ هَلْ أَدُلُّكَ عَلَىٰ شَجَرَةِ الْخُلْدِ وَمُلْكٍ لَّا يَبْلَىٰ ﴿١٢٠﴾

پس وسوسه واچوله دغه (آدم) ته شیطان، (داسې چې ورته) ویې ویل: ای آدمه! آیا وښیم تاته ونه د تل ژوندي پاتې کېدلو، او پاچاهي چې نه زائلیږي (او تل پاتې کیږي).

تفسیر: یعني داسې ونه دروښیم چې د هغې د مېوې له خوړلو څخه مو ابدي ژوندون په برخه شي، او له سره مړه نشئ، او بې زواله پاچاهي به مو په برخه شي.

فَأَكَلَا مِنْهَا فَبَدَتْ لَهُمَا سَوْءَٰتُهُمَا وَطَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِن وَرَقِ الْجَنَّةِ

پس وخوړل دوی دواړو له دغې ونې، پس ښکاره شول دوی ته غلیظه عورات د دوی، او شروع وکړه دواړو چې نښلولې، پورې کولې دواړو پر ځان پورې له پاڼو د (ونې)، د جنت (لپاره د ستر).

تفسیر: دغه ګرده قصه په «الأعراف» او نورو سورتونو کې مفصّله تېره شوې ده.

وَعَصَىٰٓ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ ﴿١٢١﴾ ثُمَّ اجْتَبَٰهُ رَبُّهُۥ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدَىٰ ﴿١٢٢﴾

او نافرماني وکړه آدم (له حکم) د رب خپل (په سبب د هېرولو د حکم د الله)؛ پس چپ شو (له مطلوبه د خلوده). بیا غوره کړ دغه (آدم) لره رب د ده، پس رجوع وکړه (الله) په آدم په قبول د توبې سره، او هدایت یې ورته وکړ.

تفسیر: یعني کله چې د الله تعالی د حکم په امتثال کې قصور وشو، او سم له خپله شانه سره د عزم او استقامت پر لاره ثابت قدم نشو پاتې، نو همدغه یې په غوایت او عصیان سره تغلیظًا تعبیر وفرمایه، یعنې د شیطان تسلّط یې پرې نښود، بلکه فورًا یې ورته د توبې توفیق وباښه، او سره له زیاتې مهرباني د ده په طرف متوجه شو، او د خپلې خوښې پر لاره یې قائم کړ.

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ

وفرمايل (الله) چې کوز شئ دواړه له دغه جنته ټول، ځيني د تاسې د ځينو نورو دښمنان يئ !.

تفسير: که دغه خطاب يواځې د آدم او حواء عليهما السلام په لوري وي، مراد به يې داسې وي چې: د دوی اولاده به په خپلو منځونو کې سره دښمنان وي، لکه چې په رفاقت سره يې ګناه کړې وه، د هم هغه رفاقت په بدل دا ور په برخه شو، چې اولاده يې پخپل منځ کې سره دښمنان شول، او که دغه خطاب د ابليس او آدم عليه السلام په لوري وي، نو مقصد به يې داسې وي چې: د دواړو په ذرياتو کې به دغه دښمني برابره قائمه پاتې کيږي، شياطين به تل د بنيادمانو د ضرر رسولو په فکر کې وي.

فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَىٰ ﴿۱۲۳﴾

پس که راغی تاسې ته له طرفه ځما هدايت (چې کتابونه او رسولان دي)، پس هر چا چې متابعت وکړ د هدايت ځما؛ پس نه به ګمراه کيږي (په دنيا کې)، او نه به بدبخت شي (په عُقبی کې).

تفسير: يعنې نه د جنّت له لارې څخه ګمراه او بې لارې کيږي، او نه له هغه څخه محروميږي، او تکليف او ربړ (زحمت) به وګالي، له هغه اصلي وطنه چې راغلی دی؛ بيا به بېرته بې اندېښنې همالته ور ورسيږي.

وَمَنْ أَعْرَضَ عَن ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنكًا

او هر چا چې مخ وګرځاوه له ذکره (پنده) ځما؛ پس بېشکه ده ته دی معاش (ژوند) تنګ (په دنيا يا سخت عذاب په قبر کې).

تفسير: يعنې هغه انسان چې د الله تعالى له ياده غافل او محض د دغې فاني دنيا ژوندون د خپل مقصود قبله وګڼي او ويې ګرځوي؛ د هغه ګزران به مکدر او تنګ کړ شي، اګر که په سترګو له ده سره ډېر مال او دولت، او د عيش سامان ليده کيږي، مګر د ده زړه د قناعت او توکل د خلاء له وجې تل د دنيا د حرص او ترقی په فکر کې اوسيږي، او د تقليل له اندېښنې څخه تل ناآرامه وي.

نصوص او تجربې په دې باندې شاهدې دي، چې په دغه دنيا کې قلبي سکون او حقيقي اطمينان هيچا ته بې د الله تعالى له ياده نه حاصليږي: ﴿أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾.

ځيني مفسّرين له ﴿مَعِيشَةً ضَنكًا﴾ نه د قبر برزخي ژوندون مرادوي، يعنې پخوا له قيامته پر ده د سختې تنګی دوره راتلونکې ده، څه مهال چې د قبر ځمکه هم پرې تنګه کړه شي، د ﴿مَعِيشَةً ضَنكًا﴾ تفسير ځينو صحابه کرامو په عذاب القبر سره هم کړی دی، بلکه (بزّار رحمه الله) په جيّدو اسنادو سره له «أبو هريرة رضي الله عنه نه مرفوعًا روايت کړی دی، په هر حال د ﴿مَعِيشَةً ضَنكًا﴾ لاندې دغه ګرد صورتونه داخلېدی شي، (والله أعلم).

وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَىٰ ﴿۱۲۴﴾

او راپورته به کړو مونږ دی (له قبره) په ورځې د قيامت کې ړوند.

تفسير: يعنې په سترګو يې ړندوي، او بيا يې د محشر په لوري بيايي، او په زړه سره به هم ړوند وي، چې د هيڅ حجّت په طرف به لاره نه مومي، دغه د حشر د ابتدايي مرحلې ذکر دی، وروسته به يې سترګې خلاصيږي، څو د دوزخ او نورو اخروي اهوالو معاينه وکړي.

قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِىٓ أَعْمَىٰ وَقَدْ كُنتُ بَصِيرًا ﴿١٢٥﴾

وبه وايي (دغه ړوند کافر) ای ربه ځما ! ولې دې پاڅولم (راوستلم) زه ړوند حال دا چې په تحقيق زه وم بينا (په دنيا کې).

تفسير: يعنې هغه کافران چې په دنيا کې د ظاهري سترګو خاوندان او په آخرت کې ړومبی ړانده محشور کيږي؛ په تعجّب او حيرت سره به سوال وکړي (آخر له مونږه څه ګناه او قصور صادر شوی دی، چې د هغه په بدل ځمونږ سترګې راڅخه اخيستی شوي دي؟).

نو وبه فرمايي پاک الله د عذاب د پرښتې په ژبه د دوی په ځواب کې:

قَالَ كَذَٰلِكَ أَتَتْكَ ءَايَٰتُنَا فَنَسِيتَهَا ۖ وَكَذَٰلِكَ ٱلْيَوْمَ تُنسَىٰ ﴿١٢٦﴾

وفرمايل (الله) همداسې وو (لکه چې ته يې وايې) خو راغلي وو تاته آيتونه ځمونږ، پس هېر کړل تا هغه؛ او په مثل (د هغو هېرولو ستا) نن ورځ هېر به کړ شې ته هم (پرېښود به شې ته په عذاب کې).

تفسير: يعنې په دنيا کې سره له دې چې ځمونږ د قدرت دلائل او نښې مو ليدې او اورېدې؛ خو نه مو پرې يقين او نه مو پرې عمل وکړ، او داسې مو ځان ترې بېخبره او ناګاره کړ، چې ګواکې د هيڅ خبره مو نه اورېدلې او نه ليدلې ده؟ نو نن د هغه په بدل تاسې همداسې هېرولی شئ، لکه چې هلته مو له ځانونو خپلو څخه ړانده جوړ کړي وو، نو اوس دلته د هغه د مناسبې سزا موندلو او له خپلو ړانده پاڅېدلو او ړاندې محشور کېدلو نه ولې حيرت او تعجّب کوئ؟.

وَكَذَٰلِكَ نَجْزِى مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنۢ بِـَٔايَٰتِ رَبِّهِۦ ۚ وَلَعَذَابُ ٱلْءَاخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَىٰٓ ﴿١٢٧﴾

او په مثل د همدې جزاء ورکولو (ځمونږ دغو کفارو ته)؛ جزاء ورکوو مونږ هغه ته چې له حده ووت او ايمان يې رانه وړ په آيتونو د رب خپل، او خامخا عذاب د آخرت ډېر سخت دی، او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی.

أَفَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُم مِّنَ ٱلْقُرُونِ يَمْشُونَ فِى مَسَٰكِنِهِمْ ۗ

آيا پس نه دي ښکاره شوي (دغو کفارو ته) چې ډېر هلاک کړي دي مونږ پخوا له دوی نه له اهل د زمانو چې ځي تيريږي دوی په (تشو) کليو ځايونو د دوی کې.

تفسير: يعنې که پر هغه سزا چې دوی ته په آخرت کې ورکوله کيږي متيقّن نه وي؛ نو آيا د تاريخي واقعاتو څخه هم څه پند او عبرت نه اخلي، د همدغو مکيانو په شاوخوا کې څومره اقوام د خپل کفر او طغيان لامله تباه او برباد شوي دي، چې د هغوی قصې او افسانې د خلقو پر ژبو لا تر اوسه جاري دي، او د هغوی له منځه د ځينو پر کنډوالو او خرابو کليو او ويجاړو ځايونو د شام او د نورو ملکونو د مسافرانو نظر هم لوېږي، او دوی پرې تېرېږي، چې د هغو له ليدلو څخه ښايي د هغو اقوامو حالات مو در په ياد شي، چې څرنګه هغوی په داسې حال کې چې پر دغو ځايونو کې ګرځېدل او لاندې باندې کېدل؛ هلاک او تباه کړل شول.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِأُولِي النُّهَىٰ ﴿۱۲۸﴾ وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَبِّكَ لَكَانَ لِزَامًا وَأَجَلٌ مُسَمًّى ﴿۱۲۹﴾

بېشکه په دغه (اهلاک د منکرينو) کې خامخا ډېر دلائل (د عبرت دي) خاوندانو د عقل ته. او که چېرې نه وی هغه وينا چې پخوا ويلې شوې ده (له طرفه) د رب ستا (په تأخير د عذاب سره)؛ نو خامخا وو به دغه (هلاک د دوی) لازم (له دوی سره)، او که نه وی اجل (نېټه) معلومه (د عمر د دوی)؛.

تفسير: يعنې د الله تعالى رحمت پر غضب سابق دی، نو ځکه مجرم ته تر ډېر وخت پورې د اصلاح موقع ور کوي، او د پوره حجّت له اتمام څخه يې ماسوا نه هلاکوي، بلکه د دې امّت په متعلق يې دا هم فرمايلي دي: ﴿وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ﴾ الآية ـ او له خپلې خاصې مهربانۍ عمومي مستأصل عذاب يې له دغه أمّت څخه لرې کړی دی، دغه خبره ده چې ستا د رب له طرفه صادره شوې ده، که داسې نه وی، او د هر مجرم قوم د عذاب لپاره يو خاص وخت مقرر نه وی؛ نو په لازمي ډول به دوی په عذاب اخته کېدل، ځکه چې د دوی د کفر او شرارت مقتضى همداسې ده چې ښايي على الفور هلاک شي، او کله چې وخت راشي؛ نو په دنيا کې به هم د دغه زورور جنګ نمونه وګوري، لکه چې د «بدر» په غزوه کې دوی له مسلمانانو سره تصادم وکړ، او د هغه يوه وړوکې نمونه يې وليده.

فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ

پس صبر کوه (ای محمده !) پر هغو خبرو چې دوی يې وايي.

تفسير: يعنې عذاب په خپل مقرر وخت کې خامخا واقع کېدونکی دی، دوی د دغه تأخير او امهال د ليدلو څخه هومره چټي خبرې چې کوي ودې کړي، تاسې سمدلاسه دغه ګردې خبرې په ډېر صبر او استقامت سره واورئ ! او په ډېر صبر او سکون د وروستنی نتيجې په انتظار کې اوسئ، د کفر پر دغو کلماتو له حده زيات مضطرب کېدلو ته هيڅ ضرورت نشته، (دغه آيت منسوخ دی په آيت سيف سره).

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ غُرُوبِهَا

او تسبيح وايه سره له حمد د رب خپل پخوا له ختلو د لمر (د سحر لمونځ)، او پخوا له پرېوتلو د دغه لمر، (د ظهر او عصر لمونځ).

تفسير: دلته د فجر او عصر لمونځونو ته اشاره وشوه، يعنې د احمقانو او شريرانو خبرو ته له سره غوږ مه ږدئ ! او مه چرت پرې خرابوئ ! په ډېر صبر او سکون سره د خپل الله تعالى په عبادت کې مشغول او لګيا اوسئ ! ځکه چې د الله تعالى مدد له دوو شيانو حاصلېږي، چې هغه صبر او لمونځ دی، کما قال الله تعالى: ﴿وَاسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ﴾ الآية.

وَمِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ فَسَبِّحْ

او په ځينو اوقاتو کې له ساعتونو د شپې پس تسبيح وايه (لمونځ اداء کړه د مغرب او عشاء).

تفسير: په دغه کې مغرب او عشاء بلکه د ځينو تفاسيرو له روايته سره سم د تهجّد لمونځ هم داخل دي.

وَأَطْرَافَ النَّهَارِ

او په دواړو څنګو (اطرافو) د ورځې کې (پر لمانځه ډېره توجّه ولره)، يا په دغو اوقاتو کې تسبيح سره له حمده وايه).

تفسير: دغه د ظهر لمونځ شو، ځکه چې په دغه وخت کې د ورځې د اول نصف او د آخر نصف سره یو ځای کیږي، بلکه په صحاح او قاموس او نورو کې تصریح شوې ده، چې «طرف» «طائفة من الشيء»، «طرف د کوم شي حصې ته وایي»، او د خاص حد او د څنډې په معنی نه دی، په دغه صورت نهار جنس منلی کیږي، او د هرې ورځې هغه یوه خاصه برخه ترې مراد کېدی شي، چې هلته ورځ نیمایي کیږي.

لَعَلَّكَ تَرْضٰى ﴿۱۳۰﴾

ښایي چې ته به راضي شي (له الله په اجر).

تفسير: یعنې که داسې د عمل طرز ولرې؛ نو تـل به په دنیا او آخرت کـې خوښ او راضـي اوسېږې، د دغه ډېر لوی اجر به در رسیږي، او له امّت سره به دې مرسته (مدد) وشي په دنیا کې، او مغفرت بـه وي پـه آخرت کې ستا په شفاعت چې د هغه له لیدلو څخه به ته خوښیږې.

وَلَا تَمُدَّنَّ عَيْنَيْكَ إِلٰى مَا مَتَّعْنَا بِهٖۤ أَزْوَاجًا مِّنْهُمْ زَهْرَةَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ لِنَفْتِنَهُمْ فِيهِ ۚ وَرِزْقُ رَبِّكَ خَيْرٌ وَّأَبْقٰى ﴿۱۳۱﴾

او مه اوږدوه (نظر د) سترګې خپلې (یعنې مه یې اړوه) هغه څیز ته چې نفع ورکړې ده مونږ په هغه څیز سره چې قسماقسم دي دغو (کفّارو) ته، ښایست د ژوندانه لږ خسیس لپاره د دې چې وازمایو دوی په دې کې، او رزق روزي د رب د تا (چې تاته یې درکړې له نبوّته علمه بهتر ډېر غوره) خیر او اوږده ده (له دنیوي نعماوو څخه).

تفسير: شیخ الهند رحمه الله د دې آیت ترجمه داسې کړې ده: «او مه اړوه دواړه سترګې خپلې هغه څیز ته چې نفع ورکړې ده مونږ په هغه سره قسماقسم ته له خلقو ...»، یعنې په دنیا کې قسم قسم کافرانو مثلا یهودانو، نصرانیانو، مشرکانو، مجوسیانو او نورو ته مونږ د عیش او تنعم کوم سامان چې ورکړی دی؛ د هغو په طرف خپلې سترګې مه غړوئ، او له سره مه ورته ګورئ !، دغه تش د څو ورځو عشرت او پسرلی دی، چې مونږ د هغه په وسیله د هغوی امتحان اخلو، چې کوم یو احسان منونکی دی؟ او کوم یو غاړه غړوونکی دی؟ هغه عظیم الشأن دولت چې الله تعالی تاته (ای محمده صلی الله علیه وسلم) مقدّر کړی دی؛ مثلا عظیم الشأن قرآن، د رسالت منصب، عظیمه فتوحات، رفع الذکر، د نامه لوړېدل، او د آخرت اعلی مراتب؛ د هغوی په مقابل کې دغه فاني او حقیر سامان څه حقیقت لري؟ ستاسې په برخه کوم دولت چې راغلی دی، هغه له دغو دولتونو څخه ډېر ښه او بهتر دی، او في نفسه یا د خپل اثر په اعتبار تل باقي پاتې کېدونکی دی.

وَأْمُرْ أَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا ۖ

او امر کوه په اهل بیت (یا اهل دین) خپل په کولو د لمانځه، او ته هم کلک پرې ولاړ اوسه.

تفسير: یعنې خپلو متعلقینو او اتباعو ته د لمانځه تأکید وکړئ ! په حدیث کې راغلي دي: «کله چې وړوکی مو اوه کلن شي؛ پر دوی لمونځونه کوئ ! او څه مهال چې لس کلن شي؛ په وهلو سره پرې لمونځ کوئ».

لَا نَسْـَٔلُكَ رِزْقًا ۖ نَحْنُ نَرْزُقُكَ ۗ وَالْعَاقِبَةُ لِلتَّقْوٰى ﴿۱۳۲﴾

نه غواړو مونږ له تا څخه روزي (نه ستا او نه د اهل ستا، بلکه) مونږ رزق روزي درکوو تاته، او عاقبت ښه خاتمه خاوندانو د پرهیزګارۍ ته ده.

تفسير: په دنيا کې مالکان پر خپلو مريو باندې روزي ګټي، دغه مالک الملک يواځې بندګي غواړي، او خپلو مريو ته په خپله روزي ورکوي، الغرض ځمونږ له لمانځه څخه هغه ارفع او اقدس ذات ته هيڅ يوه فائده نه رسيږي، بلکه د لمانځه څخه فائده هم مونږ ته عائده ده، او د لمانځه له برکته په ښه شان سره روزي رارسيږي: ﴿وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾ (۲۸ جزء د الطلاق سورت (۲-۳) آيتونه، (۱) رکوع).

که د فرض لمانځه او د معاش په کسب کې څه تعارض واقع شي؛ الله تعالى داسې اجازه نه ده رکوي چې د معاش په مقابل کې لمونځ ترک کړې !، په هر حال ښايي چې هرومرو لمونځ اداء کړ شي، روزي رسوونکی هم هغه الله دی چې د هغه په حکم سره لمونځ کوو.

وَقَالُوا لَوْلَا يَأْتِينَا بِآيَةٍ مِّن رَّبِّهِ

او وايي (کفّار) ولې نه راوړي محمد صلى الله عليه وسلم مونږ ته يوه معجزه (له طرفه) د رب خپل چې (مونږ يې غواړو په تصديق د نبوّت خپل).

تفسير: يعني کومه داسې يوه ښکاره معجزه او نښه ولې نه راښيي چې د هغې په ليدلو سره مونږ ته بيخي د انکار او تردّد موقع نشي پاتې، د دغومره ور ځينو ويرولو او تخويفاتو څخه څه ګټه حاصليږي؟.

أَوَلَمْ تَأْتِهِم بَيِّنَةُ مَا فِي الصُّحُفِ الْأُولَىٰ ۝١٣٣

آيا نه دی راغلی دوی ته مصدّق دليل برهان د هغه شي چې په کتابونو پخوانيو کې وو.

تفسير: يعني دغه خلق له ضده او عناده وايي چې کومه معجزه او نښه دې ولې رانه وړه؟ آيا له سلهاوو نورو معجزو او نښو څخه برسېره او له ګردو څخه لويه معجزه او نښه دغه عظيم الشأن قرآن هغوی ته نه دی رسېدلی، چې د پخوانيو کتابونو د ضروريه وو مضامينو محافظ او د ده د صداقت لپاره د حجّت او شهادت په ډول دی، او د هغه اعجاز له لمر څخه هم زيات ظاهر او ښکاره دی، لکه چې د (۲۱ جزء د العنکبوت سورت په (۵۰ - ۵۱) آيتونو (۵) رکوع) کې داسې يو آيت لولو: ﴿وَقَالُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ آيَاتٌ مِّن رَّبِّهِ ۖ قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ وَإِنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ۝ أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتَابَ يُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَرَحْمَةً وَذِكْرَىٰ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ۝﴾.

وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُم بِعَذَابٍ مِّن قَبْلِهِ لَقَالُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِن قَبْلِ أَن نَّذِلَّ وَنَخْزَىٰ ۝١٣٤ قُلْ كُلٌّ مُّتَرَبِّصٌ فَتَرَبَّصُوا ۖ فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ أَصْحَابُ الصِّرَاطِ السَّوِيِّ وَمَنِ اهْتَدَىٰ ۝١٣٥

او که چېرې مونږ هلاک کړي وی دوی په عذاب سره پخوا له دغه (قرآنه يا له محمده)؛ نو خامخا به ويلي وی دوی: ای ربه ځمونږه ! ولې ونه لېږه تا مونږ ته يو رسول، نو چې متابعت کړی وی مونږ د آيتونو ستا پخوا له هغه چې ذليل يا شرمنده شوي وی مونږ (په دنيا يا په آخرت کې). ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې هر يو (له تاسې او له مونږ عاقبت د امر ته) انتظار کوونکی دی پس تاسې هم انتظار کوئ، پس ژر پوه به شئ تاسې چې څوک دي ياران د لارې سمې صافې؟ او کوم يو دی چې په سمه صافه لاره روان دی؟ (مونږ که تاسې).

تفسير: يعني د داسې عظيم الشأن نښان له ليدلو څخه وروسته وايي چې: ولې دې کومه معجزه او نښه رانه وړه؟ او فرض يې کړئ ! که مونږ نه وی ورښوولی - يعني قرآن مو نه وی نازل کړی - او پخوا د کتاب له انزاله او د رسول له ارساله

دوی مو د کفر او شرك په سزا کې د دوزخ په کنده کې غورځولی؛ نو دوی به شورماشور نښلاوه، او داسې به یې ویل: ای ربه ! د سزا ورکولو څخه پخوا ښایي څمونږ لپاره کوم کتاب او پوهوونکی دې رالیږلی وی، چې مونږ یې په ذلت او رسوایۍ باندې له اخته کېدو څخه لا پخوا خبر کړي وی؛ نو تا به لیده چې مونږ ستاسې د احکامو په تعمیل کې څومره زیار (محنت) ایسته؟.

تمّت سورة طه بتوفيقه وعونه، ولله الحمد.



# سُورَةُ الأَنبِيَاءِ

«د الأنبياء سورت مکّي دی، (۷) رکوع (۱۱۲) آیتونه لري، په تلاوت کې (۲۱)، او په نزول کې (۷۳) سورت دی، د ابراهیم علیه السلام له سورت څخه وروسته نازل شوی دی.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اقْتَرَبَ لِلنَّاسِ حِسَابُهُمْ وَهُمْ فِي غَفْلَةٍ مُّعْرِضُونَ ﴿١﴾

نژدې شو خلقو ته (وخت د) حساب (او جزا) د دوی، حال دا چې دوی په غفلت کې دي (له دې حساب او جزا څخه) مخ ګرځوونکي دي (له ایمان راوړلو څخه په دغه سره).

تفسیر: یعنې د حساب او کتاب او مجازاتو ساعت رارسېدونکی دی، لیکن دغه مشرکین او نور خلق په سخت غفلت او جهالت کې پراته دي، او د قیامت د څواب ورکولو لپاره هیڅ یو تیاری نه نیسي، او کله چې دوی ته د الله تعالی آیتونه اورول کیږي، او نصیحت ورته وشي چې د غفلت له خوبه راویښ او راپورته شئ؛ نو په ډېرې بې پروایی او بې اعتنایی سره یې اوري، او هیڅ اهمیت ورته نه ورکوي، او داسې یو وضعیت اختیاروي، چې ګواکې دوی له سره له الله تعالی سره مخامخ کېدونکي نه دي، او نه څه حساب او کتاب ورسره کیږي.

مَا يَأْتِيهِم مِّن ذِكْرٍ مِّن رَّبِّهِم مُّحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ ﴿٢﴾ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ

او نه راځي دوی ته هیڅ نصیحت له (طرفه د) رب د دوی نوی؛ مګر خو اوري دوی هغه (له خپل رسول څخه) حال دا چې دوی لوبې پرې کوي، په دې حال کې چې بوخت (مشغول) وي زړونه د دوی (په دنیوي چارو، او غافل وي لـه ضروري کارونو څخه).

تفسیر: یعنې د قرآن عظیم ډېر ارزښتناک (قیمتي) نصیحتونه دوی ته د لوبو او ننداړو حیثیت لري، او همغسې یې اوري، که دوی په اخلاص سره په کې فکر او غور او په تعمیل کې یې هڅه (کوښښ) کولی؛ نو د دوی دین او دنیا به دواړه ښه او سم شوي وی، لیکن د دې لامله چې د دوی زړونه بیخي له دې پلوه غافل او له یوه مخه په لوبو او ننداړو او تماشو کې لګیا او بوخت دي؛ نو ځکه داسې غور او فکر کولو ته له سره وخت نه لري.

وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا هَلْ هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴿٣﴾

او ښه پټوي راز (خپل) هغه کسان چې ظلم یې کړی (په ځانونو خپلو په شرک سره، او وایي کفّار:) نه دی دا (محمد) مګر خو یو انسان په شان ستاسې، آیا پس راځئ تاسې هغه جادو ته حال دا چې تاسې ګورئ (چې دا جادو دی).

تفسیر: کله چې دوی له ډېر نصیحت اورېدلو څخه تنګ شول؛ نو څو بې انصافان سره راټول شول، او یوه پټه جرګه یې سره جوړه کړه، او د قرآن او رسول الله په متعلق یې په داسې خبرو خوله بېرته کړه چې دغه رسول خو څمونږ په شان یو انسان دی، نه پرښته ده او ته له مونږ څخه د کوم زیات ظاهري امتیاز خاوند دی، البته دی په جادو باندې پوهیږي،

دغه کلام چې دی يې لولي او مونږ ته يې اوروي؛ هرومرو د سحر او کوډو کلام دی، نو بيا په تاسې باندې څه ټکه (تندر) لوېدلې ده چې په خپلو سترګو يې ګورئ او بيا د هغه جادو په لومو (دام) کې ځان نښلوئ، لازمه ده چې هغه ته له سره مه نژدې کېږئ.

﴿قٰلَ رَبِّىْ يَعْلَمُ الْقَوْلَ فِى السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ۫ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝﴾

وويل (رسول دوی ته) رب مې عالم دی په وينا (د هر هغه چا چې وي) په اسمان کې او په ځمکه کې، او هم دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسير: رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: که تاسې هر څومره پټې او مخفي مشورې وکړئ؛ پاک الله له هغو ټولو څخه عالم او خبر دی، چې د اسمانونو او ځمکو په هرو پټو خبرو او احوالو هم ښه خبر او عليم دی، ستاسې په دغو مخفي او پټو خبرو او جرګو به څرنګه علم ونه لري؟ او ستاسې دغه پلمې (تدبيرونه) او حيلې له هغه څخه څرنګه پټې پاتې کېدی شي؟.

﴿بَلْ قَالُوْۤا اَضْغَاثُ اَحْلَامٍۭ بَلِ افْتَرٰىهُ بَلْ هُوَ شَاعِرٌ ۚۖ فَلْيَاْتِنَا بِاٰيَةٍ كَمَاۤ اُرْسِلَ الْاَوَّلُوْنَ ۝﴾

بلکه (دغه کفّار) وايي (چې دغه قرآن) ګډوډ خوبونه دي، بلکه له خپل ځانه يې جوړ کړي دي، بلکه دی شاعر دی، پس بايد راوړي مونږ ته کومه لويه معجزه لکه هغه (معجزه) چې لېږلي شوي وو لومړني (انبياء په هغو سره).

تفسير: د پاک قرآن په اورېدلو سره به د ډېر ضد او عناد له کبله داسې بدحواسه کېدل، چې له سره به په يوه فکر او رايه باندې قائم نه پاتې کېدل، کله به يې ورته جادو (کوډې) ويل، کله به يې ګډوډ پرېشانه خوب باله، کله به يې داسې ويل چې: دا خبرې دی له ځانه جوړوي او مونږ ته يې وړاندې کوي، او بيا پرې د قرآن نوم ږدي، نه يواځې همدا به يې ويل؛ بلکه داسې وينا به يې هم کوله چې: محمد صلی الله عليه وسلم ډېر ښه او عمده شاعر هم دی، او د شعراوو په شان د لوړو (اوچتو) تخيّلاتو له لارې ډېر ښه مؤثر مضامين او مسجع عبارات جوړوي، او خلقو ته يې وړاندې کوي، که په واقع کې داسې نه وي؛ نو دی دې هم د نورو پيغمبرانو په شان کومه ښکاره لويه معجزه راوښيي.

دغه ويناګانې هم محض د عناد اوتش د ربړولو (تکليف ورکولو) لامله وې، ځکه چې اول خو د مکې معظمې دغه جاهل مشرکان د پخوانيو انبياوو له معجزو څخه هيڅ خبر نه وو، دويم دا چې څمونږ د رسول الله صلی الله عليه وسلم ډېرې داسې ښکاره معجزې او نښې يې هم ليدلې وې؛ چې د پخوانيو انبياوو له معجزو او نښو څخه په هيڅ يو صورت کمې نه وې، او له ټولو څخه ډېره لويه او غټه معجزه او نښه همدغه د عظيم الشأن قرآن معجزه ده، دوی په خپلو زړونو کې ښه پوهېدل چې دا نه جادو او نه مهمل عبارات او نه چټي (بېکاره) خوب او نه شعر دی، نو هر کله چې به يې هيڅ يوې خبرې له دغې معجزې سره سمون نه خوړ؛ نو هغه به يې پرېښوده او بله خبره به يې ورته جوړوله: ﴿اُنْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوْا لَكَ الْاَمْثَالَ فَضَلُّوْا فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ سَبِيْلًا﴾ د الفرقان اوله رکوع.

﴿مَاۤ اٰمَنَتْ قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا ۚ اَفَهُمْ يُؤْمِنُوْنَ ۝﴾

(وويل الله) نه وو راوړی ايمان (په معجزو) پخوا له دوی نه هيڅ (اهل د) کلي چې هلاک کړی دی مونږ اهل د هغه (په سبب د تکذيب د دوی)، آيا پس دغه کفّار به ايمان راوړي؟ (بلکه نه يې راوړي).

تفسير: يعني پخوانيو قومونو ته فرمايشي معجزې او نښې ورښوولې شوې وې، مګر دوی د هغو په ليدلو هم تابع نشول، او حق يې ونه مانه، بالآخر له سنت الله سره سم هلاک کړی شو، که د مکې معظمې د دې مشرکانو دغه غوښتنې هم پوره کړی شي؛ ښکاره ده چې دوی يې هم منونکي نه دي، هرومرو به د الله تعالی د عام عادت سره موافق سپېره او فنا کړی شي، حال دا چې د هغوی بيخي تباهي او خرابي مقصود نه ده، بلکه د الله تعالی حکمتونه في الجملة د دوی دوام او بقاء غواړي.

﴿وَمَآ أَرۡسَلۡنَا قَبۡلَكَ إِلَّا رِجَالٗا نُّوحِيٓ إِلَيۡهِمۡۖ فَسۡـَٔلُوٓاْ أَهۡلَ ٱلذِّكۡرِ إِن كُنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ٧﴾

او نه وو لېږلی مونږ پخوا له تا (ای محمده !) مګر خو سړي چې وحي به کوله مونږ دوی ته، پس پوښتنه وکړئ له خاوندانو د ذکره (د کتابيانو له علماوو څخه) که يئ تاسې چې نه پوهېږئ.

تفسير: دا د دوی د هغه قول ځواب دی ﴿هَلۡ هَٰذَآ إِلَّا بَشَرٞ مِّثۡلُكُمۡۖ﴾، يعنې کوم انبياء چې پخوا راغلي وو، چې د هغو د معجزو په شان له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه هم د معجزې د ښوولو غوښتنه کوئ؛ هغوی هم د رسول الله صلی الله عليه وسلم په شان انسانان وو، پرښتې نه وې، که له داسې مشهورې او مستفيضې خبرې څخه هم تاسې د خپل جهالت له سببه بې خبره يئ؛ نو له هغو کسانو څخه پوښتنه وکړئ او ځان پرې خبردار کړئ؛ چې هغه ترې ښه خبر دي (لکه د اهل کتابو عالمان).

﴿وَمَا جَعَلۡنَٰهُمۡ جَسَدٗا لَّا يَأۡكُلُونَ ٱلطَّعَامَ وَمَا كَانُواْ خَٰلِدِينَ ٨﴾

او نه وو ګرځولي مونږ (دغه پخواني رسولان) داسې جسدونه چې نه يې خوړ طعام، او نه وو دوی تل پاتې کېدونکي (په دنيا کې، بلکه طعام به يې خوړ، او مړه کېدل به هم).

تفسير: يعنې انساني خصائص په هغو کې موجود وو، او د هغوی بدن د پرښتو په شان نه وو، چې هيڅ کله خواړه ونشي خوړلی، او نه هغوی د الوهيت مرتبه لرله چې له سره مرګ او فناء پرې رانشي، او تل تر تله ژوندی پاتې شي.

﴿ثُمَّ صَدَقۡنَٰهُمُ ٱلۡوَعۡدَ فَأَنجَيۡنَٰهُمۡ وَمَن نَّشَآءُ وَأَهۡلَكۡنَا ٱلۡمُسۡرِفِينَ ٩﴾

بيا رښتيا کړه مونږ هغوی سره وعده (د نجات د دوی)؛ پس نجات ورکړ مونږ هغوی ته، او هغو ته چې ځمونږ اراده وه (د نجات د دوی چې مصدّقين دي)، او هلاک کړل مونږ مسرفان (له حده تېرېدونکي د رسولانو مکذّبين).

تفسير: يعنې د هغوی امتياز له نورو بندګانو څخه دا وو چې د الله تعالی له لوري د مخلوق د هدايت او اصلاح لپاره ټاکل شوي وو، الله تعالی په دوی وحي نازلوله، او سره له بې سرو سامانۍ به يې د مخالفينو په مقابل کې دوی سره د نصرت او حمايت وعدې کولې، لکه چې پاک الله خپلې دغه وعدې ټولې رښتيا او ښکاره هم کړې، او دغه انبياء يې د خپلو ملګرو سره محفوظ وساتل، او هغه لوی لوی متکبر دښمنان چې هغوی سره به يې مخالفت او ډغرې وهلې؛ تباه او غارت کړل شول، بېشکه محمد صلی الله عليه وسلم هم بشر دی، ليکن د بشر له هغو انواعو څخه دی چې د هغو مرسته او حمايت د ټولې دنيا په مقابل کې کاوه شي، د دوی مخالفينو ته لازم دي چې د خپل انجام فکر او انديښنه وکړي، او د پخوانيو قومونو له مثالونو څخه دې پند او عبرت واخلي، داسې ونه شي چې د آخرت له حساب نه پخوا په همدغې دنيا کې دوی سره حساب او کتاب شروع شي.

لَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكُمۡ كِتٰبًا فِيۡهِ ذِكۡرُكُمۡ‌ؕ اَفَلَا تَعۡقِلُوۡنَ ۝۱۰

خامخا په تحقيق نازل كړى دى مونږ تاسې ته يو كتاب چې په هغه كې ذكر (پند) ستاسې دى، آيا پس تاسې عقل نه لرئ (چې ايمان پرې راوړئ).

تفسير: يعني د پاک قرآن په وسيله تاسې ته هر قسم پند او نصيحت دركړى شوى دى، او د ټولو ښو او بدو پاى او انجام دربښوول شوى دى، كه لږ عقل او سد (هوش) هم ولرئ؛ نو زيار او كوښښ به كوئ چې د الله تعالى له عذابه ځان وساتئ، او د پاک قرآن قدر او عظمت په ښه شان سره وپېژنئ، چې په حقيقت كې ستاسې د لويې او شرف لپاره يو لوى سند او قاطع برهان دى، ځكه چې ستاسې د قوم په ژبه او ستاسې د قوم په يوه كامل فرد باندې نازل شوى دى، او په دنيا كې يې تاسې ته دائمي وياړ او شهرت دربښلى دى، كه تاسې د خپل دغسې محسن قدر نه پېژنئ، او خبرو ته يې غوږ نه كېږدئ؛ نو په دنيا كې به خوار او ذليل شئ، او د آخرت عذاب به بېل تاسې ته تيار شي.

وَكَمۡ قَصَمۡنَا مِنۡ قَرۡيَةٍ كَانَتۡ ظَالِمَةً وَّاَنۡشَاۡنَا بَعۡدَهَا قَوۡمًا اٰخَرِيۡنَ ۝۱۱

او ډېر ټوټې ټوټې كړي دي مونږ (په هلاكولو سره) له اهل د كليو چې وو هغوى ظالمان، او پيدا كړل مونږ وروسته له هغو څخه قومونه نور (د دوى په ځاى).

تفسير: يعني داسې نه ده چې د هغو له وركېدو څخه به د الله تعالى ځمكه خرابه او ويجاړه (ورانه) شي، دوى چې ورک شي؛ د دوى په ځاى نور خلق پيدا او ودانوي.

فَلَمَّاۤ اَحَسُّوۡا بَاۡسَنَاۤ اِذَا هُمۡ مِّنۡهَا يَرۡكُضُوۡنَؕ ۝۱۲ لَا تَرۡكُضُوۡا وَارۡجِعُوۡۤا اِلٰى مَاۤ اُتۡرِفۡتُمۡ فِيۡهِ وَمَسٰكِنِكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تُسۡـَٔـلُوۡنَ ۝۱۳

پس هر كله چې حس به كړ (وبه موند) دوى عذاب څمونږ؛ ناڅاپه دوى به له دغه عذابه تښتېدل (په ډېره بيړه ـ تلوار). (نو پرښتو به په تمسخر سره ورته ويل:) مه تښتئ او بېرته لاړ شئ هغه ځاى ته چې ښه ژوند دركړى شوى وو تاسې ته په هغه كې، او كورونو خپلو ته، ښايي چې له تاسې نه پوښتنه وكړى شي.

تفسير: يعني كله چې كافران او مشركان د الله تعالى له عذاب سره مخامخ شول؛ نو ويې غوښتل چې له هغه ځايه وتښتي، او په تېښته سره ځان ته نجات حاصل كړي، په دغه وخت كې دوى ته وويل شول چې: چېرې تښتئ؟ ودرېږئ او په همغه لوري بېرته لاړ شئ چې هلته مو عيش او عشرت كاوه، او ډېر زيات د تنعم اسباب مو راجمع كړي وو، ښايي چې هلته څوک له تاسې څخه پوښتنه وكړي.

يا دا چې تاسې خو داسې لوى سړي وئ، چې په هر ځاى كې به ستاسې عزت او احترام كېده، اوس هم هلته لاړ شئ، هيڅ د تېښتې ضرورت نشته، څو خلق په خپلو مهمّاتو كې له تاسې سره خبرې اترې او مشورې وكړي، دغه ټولې خبرې د تهكم په توګه ويلې شوي دي.

قَالُوۡا يٰوَيۡلَنَاۤ اِنَّا كُنَّا ظٰلِمِيۡنَ ۝۱۴ فَمَا زَالَتۡ تِّلۡكَ دَعۡوٰىهُمۡ حَتّٰى جَعَلۡنٰهُمۡ حَصِيۡدًا خٰمِدِيۡنَ ۝۱۵

وبه وايي: اى هلاكته څمونږ (را حاضر شه ! دغه دي وخت دى) بېشكه مونږ وو ظالمان. پس تل به وي دغه بلنه د دوى (هلاكت لره)، تر هغو پورې چې وبه ګرځول مونږ دوى ريبل شوي، مړه يخ پراته.

تفسير: يعني كله چې عذاب يې په خپلو سترګو وليد؛ نو هلته يې په خپلو جرمونو اعتراف وكړ، او درګرده به يې داسې چغې وهلې؛ چې بېشكه مونږ ظالمان او مجرمان يو، ليكن اوس د دوى دغه افسوس او حسرت څه په كار راځي؟.

دا د توبې د قبول وخت نه وو، د دې وخت اعتراف او ندامت بېكاره وو، او بالآخر په دې ډول سره ختم كړى شو، لكه چې شين كښت (فصل) يو دم وربېلى شي، او درمند شي، يا په اور كې د سوځېدلو لرګيو د ايرې د ډېرې په شان پاتې كيږي (العياذ بالله).

وَمَا خَلَقۡنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلۡأَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا لَٰعِبِينَ ١٦

او نه دي پيدا كړي مونږ اسمان او ځمكه او نه هر هغه څه چې په منځ د دوى كې دي په داسې حال كې چې لوبې كوونكي وو مونږ (او هيڅ يوه ګټه «فائده» د دوى په پيدايښت باندې مرتبه نه وي).

تفسير: يعني چې په كې كوم «معتدّ به» حكمت او صحيح غرض نه وي، نو څكه عقلمن ته ښايي چې د عالم د خلقت په غرض او غايه وپوهيږي، او دنيا تش د لوبې او تماشا ځاى ونه ګڼي، او له انجام څخه غافل نشي، بلكه ښه وپوهيږي چې دنيا د آخرت لپاره پيدا كړى شوې ده، او د هر نېك او بد عمل جزاء او سزا رسېدل، او د ذرې ذرې حساب كېدل يوه حقه او ضروري خبره ده.

لَوۡ أَرَدۡنَآ أَن نَّتَّخِذَ لَهۡوٗا لَّٱتَّخَذۡنَٰهُ مِن لَّدُنَّآ إِن كُنَّا فَٰعِلِينَ ١٧ بَلۡ نَقۡذِفُ بِٱلۡحَقِّ عَلَى ٱلۡبَٰطِلِ فَيَدۡمَغُهُۥ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٞۚ وَلَكُمُ ٱلۡوَيۡلُ مِمَّا تَصِفُونَ ١٨

او كه اراده كړې وى مونږ چې ونيسو مونږ لهو (اسباب د شغل لكه ښځه او ولد)؛ نو خامخا نيولى به وو مونږ هغه لهو له طرفه خپله كه وى مونږ كوونكي د دې كار. بلكه ويشتل كوو مونږ په حق سره په باطل باندې بيا (دغه حق) سر ماتوي د هغه (باطل) او محو كوي يې، پس ناڅاپه دا باطل هلاك (او ورك) كيږي، او تاسې ته اور، افسوس، عذاب، خرابي ده (اى كفّارو!) له هغه څه څخه چې ثابتوئ تاسې (په هغه سره الله ته ښځه، ولد).

تفسير: يعني كه بالفرض داسې لهو او لعب كار ځمونږ له شانه سره لايق هم وى، او مونږ داسې اراده هم كړې وى، چې همداسې كومې مشغلې او لوبې او تماشې جوړې كړو؛ نو دغه كار به مونږ بالذات پخپله او په خپل قدرت كړى وى، او ستاسې مجازات او مكافات كولو او نيولو او خوشې كولو ته به له سره هيڅ يو ضرورت نه وو پاتې، ليكن حقيقت دا دى چې دنيا محض لوبې او تماشا نه ده، بلكه د سعي او عمل او مبارزې ميدان دى، دلته د حق او باطل مقابله كيږي، حق يرغل كوي او د باطل سر ماتوي، له دې څخه تاسې د خپل شرك او ناپوهى په پاى (آخر) او انجام وپوهېږئ، كله چې د حق او صداقت ګولۍ او مردكى په پوره قوّت په تاسې ولويږي؛ هلته به څرنګه خرابي او بربادي ستاسې په برخه شي؟ او بل كوم يو طاقت به تاسې ته نجات دركړى شي؟.

وَلَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ وَمَنۡ عِندَهُۥ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَلَا يَسۡتَحۡسِرُونَ ١٩ يُسَبِّحُونَ ٱلَّيۡلَ وَٱلنَّهَارَ لَا يَفۡتُرُونَ ٢٠

او خاص ده لره دي هر هغه څوك چې په اسمانونو كې او په ځمكه كې دي (د پيدايښت، ملكيت، او بندګى له مخې)، او هغه (پرښتې) چې ده څخه دي؛ لږ څه تكبر، غرور او لويي نه كوي دوى له عبادت د ده (الله)، او نه ستومانه كيږي (له عبادته يې يوه شيبه «لحظه» هم). تسبيح وايي په شپه او ورځ كې، نه سست (او ضعيف) كيږي.

**تفسير:** يعني پرښتې سره له دې چې د الله تعالی د دربار له مقربانو څخه دي، لږ څه تكبر، غرور او لويي نه كوي، او د خپل الله تعالی بندګي او غلامي د خپل ځان لپاره عزت او فخر ګڼي، او د عبوديت د وظايفو په اداء کې لګيا اوسيږي، او له سره په کې نه ستړي كيږي، او نه تريې په تنګ كيږي، بلكه همدغه ذكر او تسبيح د دوی روحاني غـذا ده، څرنګه چې مونږ تل خپله ساه او نفس ښكته او پورته كوو، او ورسره په نورو كارونو كې هم مشغوليږو؛ د پرښتو د تسبيح او ذكر كيفيت همدغسې وګڼئ! پرښته پر هر كار چې مأموره شي، او په هر يوه خدمت كې چې بوخته او لګيا وي؛ يوه شيبه (لحظه) هم د الله تعالی له ذكره نه غافليږي.

أَمِ اتَّخَذُوٓا۟ ءَالِهَةً مِّنَ ٱلْأَرْضِ هُمْ يُنشِرُونَ ﴿٢١﴾

آيا نيولي دي دوی نور معبودان له ځمكې څخه (يا په ځمكه كې) چې دوی به هم ژوندي كوي مـړي (بلكه نشي ژوندی كولی).

**تفسير:** يعني اسماني پرښتې خو له سره د الله تعالی له بندګۍ څخه نه زړه تنګي او نه ستومانه كيږي، بلكه د ده په ياد او بندګۍ كې مشغولې وي، بيا آيا په ځمكه كې څه داسې موجودات شته چې هغوی د الله تعالی په مقابل كې معبود وګرځولی شي؟ او كله چې پاک الله د دوی عابدان په خپل عذاب كې هلاک كړي؛ آيا دوی يې بېرته ژوندي كولی شي؟ يا له هلاكت څخه ورته نجات وركولی شي؟ له سره يې نشي كولی.

لَوْ كَانَ فِيهِمَآ ءَالِهَةٌ إِلَّا ٱللَّهُ لَفَسَدَتَا ۚ

كه چېرې وی په دغه اسمان او ځمكه كې نور معبودان (حاكمان) بې له الله څخه؛ نو خامخا وران شوي به وو دواړه (عادتًا د دوی د اختلاف په سبب).

**تفسير:** دغه د آلهه وو او د تعدّد پر ابطال نهايت پوخ او واضح دليل دی، چې عظيم الشأن قرآن هغه په خپل مخصوص اسلوب سره وړاندې كړی دی، ښه پام وكړئ ! چې عبادت دكامل تذلّل نوم دی، او كامل تذلّل صرف د هم هغه كامل لوی ذات په مخكې اختياراوه شي چې په خپل ذات او صفاتو كې له هر حيثه او هر جهته كامل وي، چې همدغه ته مونږ (الله جلّ جلاله) وايو.

فَسُبْحَـٰنَ ٱللَّهِ رَبِّ ٱلْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٢٢﴾

نو پاک دی الله چې رب د عرش دی له هغو (ناكارو خبرو او شيانو) چې دوی يې منسوبوي ورته.

**تفسير:** چې د لوی عرش يواځې مالک او څښتن الله تعالی دی، د ده په ملک او باچايي كې له سره ګډون ځای نه لري، دی خپلواک باچا دی، كله چې دوه واكدار باچايان په يوه اقليم كې نشي ځايېدلی چې د هغو واكداري هم يواځې مجازي ده؛ نو دوه كل مختاره او مطلق قادر آلهه به څرنګه په يوه سلطنت كې شريک كېدی شي.

لَا يُسْـَٔلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْـَٔلُونَ ﴿٢٣﴾

نه پوښتېدلی كيږي (الله) له هغو (شيانو) چې كوي يې (ځكه چې الوهيت يواځې د ده صفت دی)، او دوی پوښتېدلی كيږي (د دوی له افعالو، احوالو او اقوالو، ځكه چې دوی مخلوق او مملوک دي).

تفسیر: یعني الله تعالی د هغه لوی ذات نوم دی، چې مطلق قادر او کل مختار دی (او ټول کارونه یې صواب او له حکمته ډک دي)، د ده د قدرت او مشیت مخه نیول لا څه چې تشه پوښتنه ترې هم څوک نشي کولی، چې مثلاً هغه فلانی کار دې ولې داسې وکړ؟ مګر پاک الله حق لري، او ده لره ښایي چې هر هغه څوک چې اراده یې وشي؛ مؤاخذه یې کړي، او ترې لازمې پوښتنې وکړي.

اَمِ اتَّخَذُوۡا مِنۡ دُوۡنِهٖۤ اٰلِهَةً ؕ قُلۡ هَاتُوۡا بُرۡهَانَكُمۡ ۚ

آیا نیولي دي (دغو مشرکانو) بې له دغه الله څخه نور معبودان؟ ووایه (ای محمده! دوی ته) چې راوړئ سند خپل (د شرک په دغه دعوی کې).

تفسیر: له دې نه پخوا پر توحید عقلي دلیل قائم کړ شو، اوس له مشرکانو څخه د دوی د شرک د دعوی په خصوص د صحیح دلیل غوښتنه کیږي، یعني بې له الله تعالی څخه د هغو معبودانو تجویز چې تاسې کړی دی؛ د دوی د اثبات لپاره که کوم عقلي یا نقلي دلیل لرئ؛ هغه راوړاندې کړئ! ښکاره ده چې له هغوی سره پرته له اوهامو او ګمانونو او د پلرونو او نیکونو له غلطو او ړندو تقلیدونو څخه بل هیڅ شی نه وو، د شرکت په دعوی کې یې نه کوم عقلي او نه کوم نقلي دلیل وړاندې کړی شو.

هٰذَا ذِكۡرُ مَنۡ مَّعِىَ وَذِكۡرُ مَنۡ قَبۡلِىۡ ؕ بَلۡ اَكۡثَرُهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ۙ الۡحَقَّ فَهُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ ۝۲۴

دغه (قرآن) دی بیان د هغه چا چې له ما سره دي (له محمدي امّت څخه) او بیان د هغه چا دی چې پخوا له ما تېر شوي دي، بلکه زیاتره د دوی نه پوهیږي په حقه خبره (چې توحید او قرآن دی)، پس دوی مخ ګرځوونکي دي (له توحید یا ستا له رسالت څخه).

تفسیر: یعني ځما د امت او د پخوانیو موحدینو ټولو همدا یوه خبره ده، چې له الله تعالی څخه پرته چې (رب العرش) دی؛ بل الله نشته، چې د هغه عقلي دلیل پخوا له دې نه بیان شو، که تاسې د دغې عقیدې له منلو څخه مخ اړوئ، او له دغې اسماني او اجتماعي عقیدې څخه پرته کوم بل دلیل لرئ؛ نو هغه راوړاندې کړئ، ځما دعوی دا ده چې دغه محمّدي امّت او نور پخواني امّتونه د دې کتاب قرآنکریم او د پخوانیو امّتونو اسماني کتابونه (تورات، انجیل، او نور) سره ټول د توحید په دې دعوی کې سره متفق دي، لکه چې نن هم له هغو زیاتو تحریفاتو سره که پخواني اسماني کتابونه ولټوئ؛ نو په هغو کې د توحید اعلان او د شرک تردید په صاف او ښکاره ډول سره مومئ، مګر دغه جاهلان په دغو خبرو څه پوهیږي، که پوهېدلئ؛ نو د حقې خبرې د اورېدلو په مقابل کې به یې دغسې د انکار او اعراض وضعیت نه غوره کاوه.

وَمَاۤ اَرۡسَلۡنَا مِنۡ قَبۡلِكَ مِنۡ رَّسُوۡلٍ اِلَّا نُوۡحِىۡۤ اِلَيۡهِ اَنَّهٗ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّاۤ اَنَا فَاعۡبُدُوۡنِ ۝۲۵

او نه وو لېږلی مونږ پخوا له تا څخه هیڅ رسول مګر چې وحي به کوله مونږ هغه ته (داسې) چې بېشکه شان دا دی چې نشته بر حق معبود مګر زه یم (یواځې)؛ نو بندګي کوئ ځما.

تفسیر: یعني ټولو انبیاوو او مرسلانو علیهم السلام د توحید په دې عقیده اجماع کړېده، هیڅ یوه نبي علیه السلام په هیڅ یو وخت کې یو حرف هم د توحید په خلاف نه دی ویلی، او دوی ټل همداسې تلقین کاوه، چې د یوه الله تعالی له عبادت نه پرته د بل هیچا عباد ت مه کوئ! ځکه چې هیڅوک بې د الله تعالی څخه د عبادت مستحق نه دي، نو په هم هغه شان چې له عقلي او فطري دلائلو څخه د توحید ثبوت او تحصیل او د شرک تردید کیږي؛ همداسې په نقلي حیثیت هم د انبیاوو علیهم السلام اجماع د توحید د دعوی په حقانیت باندې قطعي دلیل دی.

وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمٰنُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ

او وايي دغه (منكران): نيولى دى رحمان ولد، پاک دی دغه (الله له ولد څخه).

تفسير: د عربو ځينو قبيلو ملائكو ته د الله تعالى لوڼې ويلې، نو يې و ښودل چې د الله تعالى له لوړ شان سره لايق نه دي چې لوڼې يا ځامن ولري، نو په دې آيت سره د نصرانيانو د دې عقيدې ترديد هم وشو، چې مسيح عليه السلام ته ابن الله وايي، او د يهودانو د هغې فرقې ترديد هم وشو؛ چې عُزير عليه السلام ته د الله ځوی وايي.

بَلْ عِبَادٌ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۲۶﴾ لَا يَسْبِقُوْنَهٗ بِالْقَوْلِ وَهُمْ بِاَمْرِهٖ يَعْمَلُوْنَ ﴿۲۷﴾

بلكه (دوی) بندګان(د الله) دي مكرّم مقرّب معزّز (د الله په دربار كې په عزت سره). چې نشي ړومبی كېدی دوی له دغه (الله) څخه په خبره سره، او دوی خاص په حكم د الله عمل كوي.

تفسير: يعني هغو مكرّمو محترمو ذواتو ته چې تاسې د الله تعالى اولاد وايئ؛ هغه يې له سره اولاد نه دي، بلكه د هغه معزّز بندګان دي، او د دوی له انتهايي اعزاز او تقرّب سره سره د دوی د ادب او اطاعت حال دا دی چې د الله تعالى له رضاء او خوښې نه پرته د هغه په حضور كې له سره خوله نشي ښېرته كولی، او نه بې د الله تعالى له حكم او اجازې څخه كوم كار كولی شي، ګواكې د عبوديت او بندګۍ كمال د دوی د امتياز طغرا او ځرګنده نښه ده.

يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ

معلوم دي الله ته هغه څه چې وړاندې د دوی دي، او هغه څه چې وروسته د دوی دي.

تفسير: د الله تعالى علم د دوی په ټولو ظاهري او باطني احوالو محيط دی، د دوی هيڅ يو حركت او هيڅ يو قول او هيڅ يو فعل له ده څخه پټ نه دی، لكه هغه مقرّب بندګان چې په دې حقيقت پوهيدلي دي، تل خپلو احوالو ته ګوري، او څارنه (حفاظت) يې كوي، چې په هيڅ يو حالت كې د الله تعالى د رضا څخه مخالف څه ونه كړي.

وَلَا يَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى

او نه كوي شفاعت دوی (نشي كولی د هيچا) مګر لپاره د هغه چا چې راضي وي (ترې الله).

تفسير: يعني دوی بې د الله تعالى د رضا معلومولو څخه د هيچا شفاعت نه كوي، كله چې له موحّدو مؤمنانو څخه پاک الله تعالى خوښ او راضي وي؛ نو ځكه د دوی په حق كې په دنيا او عُقبى كې استغفار د الله تعالى د پرښتو وظيفه ده.

وَهُمْ مِّنْ خَشْيَتِهٖ مُشْفِقُوْنَ ﴿۲۸﴾

او دوی له هيبت د الله څخه ويريدونكي دي.

تفسير: بيا نو دوی ته څرنګه معبود ويلی شي؟ كله چې هغوی معبودان نه دي؛ نو د الله تعالى ځامن او لوڼې هم له سره كېدی نشي، ځكه چې صحيح اولاد د والدينو له جنس څخه وي.

وَمَنْ يَّقُلْ مِنْهُمْ اِنِّيْٓ اِلٰهٌ مِّنْ دُوْنِهٖ فَذٰلِكَ نَجْزِيْهِ جَهَنَّمَ ؕ كَذٰلِكَ نَجْزِي الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾

او هر څوک چې ووايي له دغو (ملائكو څخه چې) بېشكه زه معبود يم بې له الله څخه؛ پس دغه (ويونكي چې دي) جزا به وركوو مونږ ده ته دوزخ، همداسې (لكه چې دغو د الوهيت مدّعيانو ته سزا وركوو)؛ جزاء وركوو ظالمانو ته (چې د غير الله عبادت كوي).

تفسیر: یعنې هغه چې تاسې یې د الله تعالی اولاد یا آلهه بولئ، که هغوی (معاذ الله) په خپله په فرض محال د داسې خبرې ادعاء وکړي؛ نو هغوی به هم په هغه دوزخ کې وغورځول شي، چې د نورو له حده تېرېدونکو ظالمانو د سزا لپاره مخصوص او معیّن دی، ځمونږ له لا محدود اقتدار او جبروت څخه هغوی هم بل چېرې نشي تلی، نو بیا څنګه الله کېدی شي؟ !.

أَوَلَمْ يَرَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ كَانَتَا رَتْقًا فَفَتَقْنَاهُمَا

آیا نه دي لیدلي (نه دي خبر) هغه کسان چې کافران شوي دي چې بېشکه اسمانونه او ځمکې وو دواړه سره نښتي (ضم پیوسته په اول کې)؛ پس بېل کړل مونږ دوی دواړه.

تفسیر: د (رتق) اصلي معنی پیوست، نښتل او یو په بل کې سره ننوتل دي، په ابتداء کې ځمکه او اسمان دواړه ګډوډ، خلط ملط وو، بیا الله جل جلاله په خپل قدرت دوی دواړه سره جدا کړل، له دغه بېلوالي او جداوالي څخه وروسته د دوی دواړو طبقات سره بېل بېل او جدا شول، سره له دې بیا هم هر یو بند وو، نه له اسمان څخه باران ورېده، او نه له ځمکې څخه شی زرغونیده، بالآخره الله تعالی د انساني نوعې د ګټو او ښېګڼو (فائدو) لپاره د دغو دواړو خولې پرانستلې، له پاسه د ورېځو د اوبو ورخونه پرانستل شول، او له لاندې د ځمکې مسامونه (سوري) خلاص شول، چې د هغو په اثر په ځمکه کې سیندونه، ویالې، لښتي او چینې وبهېدلې، او راز راز شینکي، کښتونه، فصلونه، بوټي، ونې، مېوې، دانې، څرځایونه، معدنونه او نور راووتل، او اسمان یې په بې شمارو ستورو سره ښایسته کړ، چې د دوی د هر یوه لپاره یې جدا ځای او د تګ لاره او مدار مقرّر کړ.

وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ﴿٣٠﴾

او پیدا کړي دي مونږ له اوبو څخه هر شی ژوندی، نو آیا ایمان نه راوړي دوی.

تفسیر: یعنې عموما ژوندي موجودات چې ستاسې په نظر درځي؛ بالواسطه یا بلاواسطه د اوبو څخه جوړ شوي دي، او خاصتًا اوبه د دوی د ژوندانه سبب او ماده ده، مګر هغه مخلوق له دې نه مستثنی دی چې د هغو په نسبت دا ثابته شي؛ چې د هغو په تخلیق کې اوبه له سره دخل نه لري، خو بیا هم دا کلیه په دی اعتبار چې زیاتو لپاره حکم د کل وي، صادقه ده.

وَجَعَلْنَا فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَنْ تَمِيدَ بِهِمْ وَجَعَلْنَا فِيهَا فِجَاجًا سُبُلًا لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٣١﴾

او پیدا کړي دي مونږ په ځمکه باندې درانه محکم غرونه ولاړ (یا ټک وهلي دي مونږ په کې مېخونه) چې ونه خوځېږي دا ځمکه په دوی، او ګرځولي دي مونږ په دغه (ځمکه او غرونو) کې ارتې لارې لپاره د دې چې دوی لاره ومومي (او بې له تکلیف څخه خپل مقصود ته ورسېږي).

تفسیر: د دې آیت تفسیر د (النحل) په سورت کې تېر شوی دی، هلته دې وکتل شي !.

وَجَعَلْنَا السَّمَاءَ سَقْفًا مَحْفُوظًا

او ګرځولی دی مونږ اسمان چت ساتل شوی (له پرېوتلو).

تفسیر: چې نه لوېږي، نه په کې کوم سوری یا چاود لیدل کېږي، نه بدلېږي، او د شیاطینو له استراق السمع څخه محفوظ دی، او سقف یې ځکه وویل چې: په ښکاره ډول په سترګو د چت په شان معلومېږي.

وَهُمْ عَنْ اٰيٰتِهَا مُعْرِضُوْنَ ﴿۳۲﴾

او دغه کفّار له علائمو داسمانونو څخه مخ ګرځوونکي دي.

تفسیر: چې څرنګه مضبوط، محکم، وسیع او هسک (اوچت) دومره موده بې ستنو او پایو ولاړ دی، او په رنګ او روغن او ښکلا کې یې بیخي تغییر نه دی راغلی، او په کې لمر، سپوږمی، ستوري او داسې نور ډېر عجائب او غرائب لیدل کیږي، چې هر یو یې بېل بېل د رب العزّت په وجود او وحدانیت باندې دلالت کوي.

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ؕ

او دغه (الله) هغه (مطلق قادر دی چې پخپل بالغه حکمت) یې پیدا کړې ده شپه (د ارامتیا لپاره)، او ورځ (د کار لپاره)، او لمر (د رڼا لپاره)، او سپوږمی (د روښانتیا لپاره).

تفسیر: دا د هم هغو اسماني علائمو او ښېو لږ څه توضیح ده.

كُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ﴿۳۳﴾

دغه هر یو له دغو (لمر، قمر، او ستورو څخه) په فلک کې حرکت کوي، او ګرځي (لکه لامبوزن په اوبو کې په لامبو وهلو سره).

تفسیر: یعنې لمر، سپوږمی بلکه ټول ستوري په خپل مدار باندې برابر ګرځي او چورلي، د ﴿يَّسْبَحُوْنَ﴾ له لفظ څخه ظاهر دا معلومیږي چې دا سیارې د الله تعالی په حکم بالذّات په خپله ګرځي (والله تعالی أعلم).

وَمَا جَعَلْنَا لِبَشَرٍ مِّنْ قَبْلِكَ الْخُلْدَ ؕ اَفَاۡئِنْ مِّتَّ فَهُمُ الْخٰلِدُوْنَ ﴿۳۴﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ

او نه دي ګرځولی مونږ هیڅ یوه انسان ته پخوا له تانه (ای محمده !) تل ژوندي پاتې کېدل (په دنیا کې)، آیا پس که ته مړ شې پس دوی به تل پاتې کېدونکي وي (په دنیا کې؟ بلکه داسې نه ده). هر یو نفس څکونکی د مرګ دی (یعنې مري).

تفسیر: یعنې هم هغسې چې د پورتنیو ذکر شوو مخلوقاتو وجود د الله تعالی پر امر ایجاد شوی دی، د ټولو انسانانو ژوندون هم د هغه له ورکړې څخه دی، هر وخت چې وغواړي؛ دغه خپله ورکړه له دوی نه بېرته اخلي، مړینه هر چا ته دا خبره ثابتوي چې د ده هستي او وجود د ده په لاس او واک کې نه دی، او د ده ژوند د څو ورځو د پسرلي رونق او ننداره ده، چې پای (آخر) ته رسیږي او ختمیږي.

وَنَبْلُوْكُمْ بِالشَّرِّ وَالْخَيْرِ فِتْنَةً ؕ

او ازمایو مونږ تاسې (په دنیا کې) په شر، بدی، او په خیر، نېکی سره په ازموینه.

تفسیر: یعنې الله تعالی په دنیا کې په سختی، نرمی، روغتیا، ناروغتیا، تنګسه، اړتیا (احتیاج)، مصیبت، عیش، عشرت او نورو مختلفو احوالو تاسې ازمایي، څو ستاسې کره او کوټه، سره او ناسره، ښه او خراب د یو بل سره جدا او نورو ته هم د سر په سترګو ورمعلوم کړي، او ښه څرګنده (ښکاره) شي چې کوم یو په سختی صبر کوي؟ او کوم یو په نعمتونو شکر کوي؟ او څومره خلق د مایوسی، شکوه، شکایت او د ناشکری په مرض اخته او مبتلا دي.

وَإِلَيْنَا تُرْجَعُونَ ﴿٣٥﴾

او خاص مونږ ته به راوستلی شئ (د جزا لپاره).

**تفسیر:** هلته به ستاسې د صبر او شکر او د هر نېک او بد عمل ثمره او نتیجه ولیدلی شي.

وَإِذَا رَآكَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَٰذَا الَّذِي يَذْكُرُ آلِهَتَكُمْ وَهُم بِذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ هُمْ كَافِرُونَ ﴿٣٦﴾

او کله چې ووینې تا هغه کسان چې کافران شوي دي؛ نو نه نیسي دوی تا مګر مسخره کړی شوی، (او وايي پخپلو منځونو کې:) آیا دا همغه څوک دی چې یادوي (په بدئ او سپکه) معبودان ستاسې، حال دا چې دغه کفّار په یادولو د رحمان (په وحدانیت یا د خلقو په ارشاد) هم دوی کافران دي.

**تفسیر:** یعنې د خاتمې او انجام څخه بیخي بې فکره شوي دي، او دغه خلق په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ټوکې او مسخرې کوي، او د استهزاء او تحقیر په لهجه داسې وايي: ﴿أَهَٰذَا الَّذِي يَذْكُرُ آلِهَتَكُمْ﴾ «آیا دا هم هغه سړی دی چې ستاسې معبودان په بدئ یادوي؟»، دوی پخپله په دې نه شرمیږي چې پخپله د حقیقي معبود له پاک نوم او د «رحمان» له مقدّس اسم څخه بد وړي؟ او د پاک الله تعالی له ربنتینو کتابونو څخه منکر دي، او د باطلو معبودانو د بدئ له اورېدلو څخه خفه کیږي، نو په دې صورت کې د دوی حالت د تعجّب او خندا وړ (لایق) دی، که د مقابلې ډلې؟.

خُلِقَ الْإِنسَانُ مِنْ عَجَلٍ سَأُرِيكُمْ آيَاتِي فَلَا تَسْتَعْجِلُونِ ﴿٣٧﴾

پیدا کړی شوی دی انسان له تلوار (بې صبرئ)، ژر به وښیم تاسې ته آیات خپل (موعود عذاب)، پس تلوار مه کوئ تاسې (په راتللو د عذاب).

**تفسیر:** ښایي د کفارو دغه د بې عقلئ او ناپوهئ اوضاع او دغه د تمسخر او استهزاء له لیدلو څخه د ځینو په زړونو کې به دغه خبره تېره شوي وي: که په دغو بې حیاوو سم سمدلاسه عذاب مسلّط شوی وی؛ نو ډېر به ښه وي، او پخپله کفارو هم د استهزاء په ډول (طریقه) ویل چې: «هله ژر شئ، او هغه موعوده عذاب راباندې نازل کړئ! چې مونږ د هغه وړ (لایق) او مستحق یو»، دلته دغو دواړو ته دغه خبره ښوولې شوې ده، چې انسان ډېر عجلت خوښوونکی دی، ګواکې د ده په خاوره او طبیعت کې بېړه او تلوار خلط او ګډ دی، ښایي چې دوی لږ څه صبر ځنډ (ایسارتیا) وکړي، ژر به زه خپل د قهر او انتقام نښې تاسې ته دروښیم.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٨﴾

او وايي (دا کفار:) کله به وي دغه وعده (د راتلو د عذاب یا دقیامت) که چېرې یئ تاسې صادقان ربښتیني (په خپله دغه وینا کې)؟.

**تفسیر:** یعنې تل ته وايي چې قیامت راتلونکی دی، او ټول کفّار به د تل لپاره په دوزخ کې سوځي، آخر دغه وعده به کله پوره کیږي؟ که دغه خبرې ټولې ربښتیا وي؛ نو ولې همدا اوس قیامت او دوزخ نه راحاضروئ (الله تعالی وايي):

لَوْ يَعْلَمُ الَّذِينَ كَفَرُوا حِينَ لَا يَكُفُّونَ عَن وُجُوهِهِمُ النَّارَ وَلَا عَن ظُهُورِهِمْ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٣٩﴾ بَلْ تَأْتِيهِم بَغْتَةً فَتَبْهَتُهُمْ فَلَا يَسْتَطِيعُونَ رَدَّهَا وَلَا هُمْ يُنظَرُونَ ﴿٤٠﴾

که پوهیدلي وی هغه کسان چې کافران شوي دي هغه وخت چې نه به شي منع کولی له مخونو خپلو اور (د دوزخ)، او نه له شاګانو خپلو (ځکه چې اور به ترې چاپېر وي)، او نه به له دوی سره مرسته وکړی شي (د عذاب په منع کولو کې، نو نه به کافران کېدل). بلکه رابه شي دوی ته (دغه قیامت) ناڅاپه (بې له مقدمې)، پس حیران به کړي (هغه) پس طاقت به نه لري دوی د لرې کولو د قیامت، او نه به دوی ته مهلت ورکولی شي (د توبې او عذر).

تفسیر: یعني که دوی ته حقیقت څرګند (ښکاره) شي، او د هغه هیبتناک ساعت په کیفیت او نوعیت په ښه ډول سره ځان خبر او پوه کړي؛ نو بیا به له سره داسې غوښتنې ونه کړي.

دغه ټول بې ځایه اعتراضونه د بې فکرۍ او ناپوهۍ لامله د دوی په ذهنونو کې پیدا شوي، کله چې له هغه ویروونکي وخت سره مخامخ شي، او د دوی له چارچاپېره د دوزخ اور داسې احاطه وکړي، چې له هیڅ لوري به د هغه دفع نشي کولی، او نه به څوک ورسره مرسته کولی شي، نه به مهلت ورکولی شي، او نه به اوس لا له پخوا څخه د هغې ورځې د کامل شان او کیفیت اندازه او اټکل کولی شي؛ نو د دغه هولناک حالت په ناڅاپي لیدلو سره به د دوی حواس خراب شي، بیا به دا ورمعلومه شي، کوم شي پورې چې مونږ خندل، او باور مو پرې نه کاوه؛ هغه یو ثابت حقیقت وو.

وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٤١﴾

او خامخا په تحقیق مسخرې شوي دي په رسولانو پخوا له تا، پس احاطه وکړله په هغو کسانو چې مسخرې یې کولې له پخوانیو امتونو نه (جزا) د هغه شي چې وو دوی چې په هغه سره به یې مسخرې کولې.

تفسیر: یعني په هر هغه شي یې چې مسخرې کولې؛ د هم هغه په سزا کې سره اخته شول، او د هغې خندا او ملنډو مورد بېرته پخپله همدوی ورګرځېدل.

قُلْ مَن يَكْلَؤُكُم بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمَٰنِ

ووایه (ای محمده دوی ته) څوک ساتي تاسې د شپې او د ورځې له عذاب د رحمان څخه (که یې درپېښ کړي؟ هیڅوک نشته).

تفسیر: یعني د «رحمان» له قهر او غوسې څخه ستاسې ساتونکی بل څوک دی، یواځې د هغه پراخه رحمت دی، چې په تاسې سمدلاسه عذاب نه مسلّط کوي، لیکن د داسې رحمت والا، حلیم، متحمل او بردبار له قهر او غوصې څخه ډېره وېره په کار ده: «نعوذ بالله من غضب الحلیم».

بَلْ هُمْ عَن ذِكْرِ رَبِّهِم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٢﴾

بلکه دوی له یاده د رب خپل (یا له قرآن څخه) مخ ګرځوونکي دي.

تفسیر: یعني د «رحمان» د حفاظت احساس او اعتراف له هغو سره نشته، او عیش، عشرت، چړچې، امنیت، آرامتیا او د تنعم ژوندون دوی د الله تعالی له یاده بیخي غافل کړي دي، نو ځکه کله چې د هغه له طرفه دوی ته نصیحت کیږي؛ مخ ترې ګرځوي، او وایي چې دا ته څه وایي؟.

أَمْ لَهُمْ آلِهَةٌ تَمْنَعُهُم مِّن دُونِنَا ۚ لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَ أَنفُسِهِمْ وَلَا هُم مِّنَّا يُصْحَبُونَ ﴿٤٣﴾

آیا شته دوی لپاره نور معبودان چې ساتي دوی (له عذاب څخه) غیر له مونږ نه (بلکه نشته، بیا پخپله الله وايي:) طاقت نه لري (دغه معبودان) د مرستې (مدد) د خپلو نفسونو، او نه دوی ځمونږ له (عذاب څخه) ساتل کیږي (یا ملګرتیا ورسره کولی شي).

تفسیر: یعنې آیا د خپلو فرضي معبودانو په نسبت خیال کوي چې هغوی د دوی حفاظت کوي، او پخپله موقع کې به دوی د الله تعالی له عذاب څخه وژغوري (بچ کړي)؟ نو د دغو خوارانو مرسته او حفاظت لا څه چې د خپل ځان حفاظت هم نشي کولی، که څوک هغوی ګوډ یا مات کړي، یا یو شی ترې واخلي؛ نو دومره قدرت او قوّت نه لري، چې د خپل ځان مدافعه یا ساتنه وکړي، یا لږ څه لاس او پښې د هغو په مقابل کې وخوځوي، یا د خپلې ساتنې لپاره ځمونږ مرسته او ملګرتیا حاصله کړي:

بَلْ مَتَّعْنَا هَٰؤُلَاءِ وَآبَاءَهُمْ حَتَّىٰ طَالَ عَلَيْهِمُ الْعُمُرُ ۗ

(نه ده داسې لکه چې کفّار عقیده کوي) بلکه نفع رسولې ده مونږ دغو کفارو او پلرونو د دوی ته (د ژوندانه په اسبابو سره) تر هغه پورې چې اوږده شوه په دوی باندې (موده د) عمر.

تفسیر: یعنې د «رحمان» ساتنه او حفاظت او د بتانو عجز او بېچارګي داسې شی نه دی، چې خلق پرې ونشي پوهېدلی، خبره دا ده چې دوی له ډېرو پېړیو راپه دېخوا د بې فکرۍ ژوند تېر کړی دی، او د الله تعالی د عذاب صدمه یې هیڅ نه ده لیدلې، نو ځکه دوی مغرور شوي دي، او د غفلت په نشو کې مست او بیخوده پراته دي، او د الله تعالی له احکامو او د انبیاوو له پند څخه یې مخونه ګرځولي دي.

أَفَلَا يَرَوْنَ أَنَّا نَأْتِي الْأَرْضَ نَنقُصُهَا مِنْ أَطْرَافِهَا ۚ أَفَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴿٤٤﴾

آیا پس نهویني (کفّار) چې بېشکه مونږ راتګ او (قصد) کوو ځمکې (د کفّارو) ته په داسې حال کې چې کموو هغه له څنډو (غاړو) د دغې (ځمکې نه له فتوحاتو وروسته)، آیا پس کفّار غالب دي (په مؤمنانو بلکه د اسلام په مقابل کې مغلوب دي).

تفسیر: یعنې اسلام مخ په خورېدو دی، او کفر ورځ په ورځ کمزوری کیږي، او ورو ورو ځمکه په کفّارو تنګیږي، د دوی حکومتونه او ریاستونه به پرله پسې ماتیږي، او له منځه به ورکیږي، نو آیا د داسې ښکاره ننښو، آثارو او قرائنو په لیدلو سره هم دوی خپل انجام ته نه ګوري، آیا له دغو مشاهداتو سره سره دوی دا امید لري چې په رسول الله صلی الله علیه وسلم او مسلمانانو باندې به مونږ غالب شو، که دوی د عبرت سترګې لري؛ نو پکار دي چې له عقل نه کار واخلي، او له قرائنو او احوالو څخه د مستقبل اټکل او اندازه ولګوي، آیا دوی ته دغه خبره نه ده معلومه چې د دوی د شاوخوا کلي د انبیاء الله علیهم السلام د تکذیب او عداوت په سزا کې تباه او وران شوي دي، او په پای (آخر) کې د الله تعالی حزب بریالی او کامیاب شوی دی، بیا د سیّد المرسلین او کاملو مؤمنانو په مقابل کې دوی څرنګه د خپل بري او غلبې توقّع او هیله (امید) کولی شي؟ ﴿وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا مَا حَوْلَكُم مِّنَ الْقُرَىٰ وَصَرَّفْنَا الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ﴾ (۲۶ جزء د الأحقاف سورت (۴) رکوع (۲۷) آیت).

تنبیه: په همدې مضمون یو بل آیت هم د (رعد) د سورت په آخر کې تېر شوی دی، د هغه تفسیر دې ځمونږ په دغه مبارک تفسیر کې وکتلی شي.

قُلْ إِنَّمَآ أُنذِرُكُم بِٱلْوَحْىِ ۚ وَلَا يَسْمَعُ ٱلصُّمُّ ٱلدُّعَآءَ إِذَا مَا يُنذَرُونَ ﴿٤٥﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشكه همدا خبره ده چې زه ويروم تاسې په وحي سره، او نه اوري كوڼ دعاء (بلنه) كله چې وويرولى شي (نو تاسې هم د كاڼه په شان حقه خبره نه اورئ).

تفسير: يعني ځمونږ كار د الله تعالى له وحي سره سم نصيحت اورول او له خاتمې او انجام څخه خبرول دي، كه په زړه كاڼه دغه غږ نه اوري؛ نو ځمونږ قصور نه دى، دوى به د خپل كوڼوالي نتيجه او بده اغېزه (اثر) په خپله وګالي (برداشت كړي).

وَلَئِن مَّسَّتْهُمْ نَفْحَةٌ مِّنْ عَذَابِ رَبِّكَ لَيَقُولُنَّ يَـٰوَيْلَنَآ إِنَّا كُنَّا ظَـٰلِمِينَ ﴿٤٦﴾

او كه ورسيږي دوى ته لږ څه تپ له عذابه د رب ستا؛ نو خامخا وايي (كفار) هرومرو: اى هلاكه ځمونږ (راحاضر شه دغه دې وخت دى)، بېشكه چې مونږ وو (پخوا له دغه عذاب څخه) ظالمان (په كفر سره).

وَنَضَعُ ٱلْمَوَٰزِينَ ٱلْقِسْطَ لِيَوْمِ ٱلْقِيَـٰمَةِ فَلَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْـًٔا ۖ وَإِن كَانَ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ أَتَيْنَا بِهَا ۗ وَكَفَىٰ بِنَا حَـٰسِبِينَ ﴿٤٧﴾

او كېږدو تلې د انصاف لپاره د (اهل د) ورځې د قيامت، پس ظلم به ونه كړى شي په هيڅ نفس د هيڅ شي (هيڅ)، او كه وي (دغه عمل) په قدر د يوې دانې شړشم، اورئ؛ نو رابه وړو دغه (دانه)، او بس يو مونږ حساب كوونكي (يا ساتونكي د بندګانو د اعمالو).

تفسير: يعني د اوري د دانې په اندازه چې د چا عمل وي؛ هغه به هم په ميزان كې تلل كيږي، او هغه به هيڅ ضايع نشي، نه به په چا ظلم او تيرى كيږي، او د ذرې ذرې حساب به كيږي، او زمونږ حساب به داسې وروستى او فيصله كونكي وي چې وروسته به نه بل حسابوي، او نه به مونږ ددغو مخلوقاتو د اعمالو د محاسبې لپاره كوم مرستيال ته ضرورت لرو.

تنبيه: موازين د ميزان جمع ده، ښايي چې هلته به ډېرې تلې وي، يا ممكن دي چې يوه وي مګر د مختلفو اعمالو او عمالو په اعتبار به متعددې درولې شوې وي، و الله تعالى أعلم، د اعمالو د وزن او د ميزان په متعلق پخوا له دې نه د «الأعراف» په سورت كې خبرې شوي دي؛ هلته دې وكتل شي.

وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَىٰ وَهَـٰرُونَ ٱلْفُرْقَانَ وَضِيَآءً وَذِكْرًا لِّلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾

او هرومرو په تحقيق وركړى وو مونږ موسى او هارون ته فرقان (د حق او باطل بېلوونكى كتاب) او رڼا (چې حق پرې له باطل څخه پېژندل كيږي) او نصيحت لپاره د پرهېزګارانو.

تفسير: يعني تورات شريف د موسى عليه السلام په زمانه كې د حق او باطل، هدايت او ضلالت، حرامو او حلالو او نورو مسائلو فيصله كوونكى او د جهل او غفلت د تيارو رڼا كوونكى او له الله تعالى څخه د ويريدونكو لپاره پند وركوونكى كتاب وو.

الَّذِيْنَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ بِالْغَيْبِ وَهُمْ مِّنَ السَّاعَةِ مُشْفِقُوْنَ ﴿٤٩﴾

(متقيان) هغه كسان (دي) چې ويريږي له رب خپل په غيب سره، او دوى (تل) له قيامت څخه ويريدونكي دي.

**تفسير:** د قيامت خطره هم ځكه دوى په خپلو زړونو كې لري چې د دوى په زړونو كې د الله تعالى وېره ده، او تل په دغه اندېښنه او سودا كې وي چې هلته به څه راپېښيږي؟ نه چې (العياذ بالله) د الله تعالى د قهر او عذاب وړ (لايق) وګرځو، ښكاره ده چې همداسې خلق د نصيحت څخه ګټه (فائده) اخيستلى شي.

وَهٰذَا ذِكْرٌ مُّبٰرَكٌ اَنْزَلْنٰهُ ؕ اَفَاَنْتُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿٥٠﴾

او دا (قرآن) نصيحت دى مبارك چې نازل كړى (لېږلى دى) مونږ هغه (په محمد باندې)، آيا پس تاسې له دې نه انكار كوونكي يئ.

**تفسير:** يعنې دغه قرآن چې ستاسې په مخكې دى، د نصيحت داسې يو كتاب دى چې د ده لوى ارزښت (قيمت) زياته ګټه او خير د تورات په نسبت ښه څرګند او ښكاره دى، آيا له داسې يو واضح او روښان كتاب څخه تاسې منكريږئ، چې له سره په كې د انكار او تردّد ځاى نشته؟.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ

او خامخا په تحقيق وركړې وه مونږ ابراهيم ته نېكه حقه لاره د ده (په عقائدو او اعمالو كې) پخوا له (نبوّت يا پخوا له موسى يا پخوا له محمد څخه).

**تفسير:** يعنې د محمد صلى الله عليه وسلم، او موسى او هارون عليهما السلام څخه مو پخوا ابراهيم عليه السلام ته د ده د اعلى قابليت او شان سره مناسب رشد او هدايت وركړى وو، بلكه له ځلميتوب څخه پخوا لا په كوچنيتوب (ماشوم والي) كې مو هغه په داسې سمه لار برابر كړى وو چې د داسې اولوالعزمو انبياوو له شان سره وړ او مناسبه وه.

وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ﴿٥١﴾

او وو مونږ په ده باندې پوه (چې ابراهيم د رشد له خاوندانو څخه دى).

**تفسير:** يعنې د ده په استعداد، اهليت، علمي او عملي كمالاتو مونږ پوره پوه او خبر وو، نو ځكه مو هغه رشد او هدايت وركړ؛ چې د ده له شان سره وړ او مناسب وو.

اِذْ قَالَ لِاَبِيْهِ وَقَوْمِهٖ مَا هٰذِهِ التَّمَاثِيْلُ الَّتِيْٓ اَنْتُمْ لَهَا عٰكِفُوْنَ ﴿٥٢﴾

كله چې وويل (ابراهيم) پلار خپل (آزر) ته او قوم خپل ته چې څه دي دغه بتان چې تاسې دوى ته ولاړ يئ په عبادت سره (لكه مجاوران).

**تفسير:** يعنې لږ څه خو د دوى اصليت او حقيقت بيان كړئ ! آخر په خپلو لاسونو د تيږو (ګټو) توړلي بتانو ته څنګه معبودان وايئ؟ او هغوى څرنګه ستاسې معبودان كېدى شي؟.

قَالُوا وَجَدْنَا آبَاءَنَا لَهَا عَابِدِينَ ﴿٥٣﴾

نو وويل دوی چې: موندلي دي مونږ پلرونه خپل دغو (بتانو) ته عبادت کوونکي (نو مونږ هم د هغو متابعت کوو).

تفسیر: یعنې د عقل او فطرت او د نقل کوم باوري شهادت ځمونږ په تایید کې نشته، او نه دې وي، لیکن ډېر لوی دلیل د بت پرستی په صواب او حقانیت همدا دی چې: له پخوا راهیسې ځمونږ پلرونه او نیکونه د دوی په عبادت کې بوخت او مشغول وو، بیا مونږ د هغو خپلو لویانو دود (رواج) او دستور او طریقه ولې پرېږدو؟.

قَالَ لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ﴿٥٤﴾

وويل (ابراهيم) خامخا په تحقيق يئ تاسې او پلرونه ستاسې (په سبب د بُتانو) په ګمراهۍ ښکاره کې (هر عاقل ته).

تفسير: يعنې په دغه دليل سره ستاسې حقانيت او پوهه نه ثابتيږي، هو ! دغه خبره ثابتيږي چې تاسې هم د خپلو پلرونو په شان ګمراهان او ناپوهان ناخبره يئ ! او د هغو په دغه ړوند تقليد او بې ځايه متابعت تباه او بربادېږئ.

قَالُوا أَجِئْتَنَا بِالْحَقِّ أَمْ أَنْتَ مِنَ اللَّاعِبِينَ ﴿٥٥﴾

نو وويل (قوم ابراهيم ته) آيا راغلى يې ته مونږ ته په حق سره (رښتيا خبرو سره)؟ او که يې ته له لوبو کوونکو څخه؟.

تفسير: د ټول قوم له عقيدې څخه مخالف د ابراهيم عليه السلام د داسې سختې خبرې په اورېدلو سره د دوی په زړونو کې سخت خفګان او اضطراب پيدا شو، او ورته يې وويل چې: آيا په رښتيا سره ستا عقيده همداسې ده؟ يا ټوکې او مسخرې کوې؟.

قَالَ بَل رَّبُّكُمْ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ الَّذِي فَطَرَهُنَّ وَأَنَا عَلَىٰ ذَٰلِكُم مِّنَ الشَّاهِدِينَ ﴿٥٦﴾

وويل (ابراهيم داسې نه ده چې زه ټوکې کوم، يا دا بُتان رب ستاسې دي.) بلکه رب ستاسې رب د اسمانونو او (رب) د ځمکې دی هغه (الله) چې پيدا کړي يې دي دا (اسمانونه او ځمکې او ما فيهما)، او زه په دغو (چې ومې ويل له توحيد نه) له شاهدانو څخه يم.

تفسير: يعنې ځما عقيده همدا ده، او په پوره يقين او بصيرت سره پرې شاهدي ورکوم، چې ځما او ستاسې رب هم هغه يو الله تعالى دی، چې اسمانونه او ځمکې يې پيدا کړي دي، او د هغوی او د نورو ټولو خپلو مخلوقاتو حفاظت او ساتنه کوي، او بل هيڅ شی د ده په الوهيت کې له سره نشي شريکېدی.

وَتَاللَّهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُم بَعْدَ أَن تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ ﴿٥٧﴾

او قسم دی په الله خامخا څه تدبير او علاج به وکړم هرومرو (چې مات کړم) بُتان ستاسې پس له هغه چې وګرځئ تاسې شا کوونکي (بُتانو ته مخ په مېله).

**تفسير:** دغه خبره يې لرې ورو وويله، چې ځينو يې واورېده او ډېرو له سره وانهورېده، هغو چې دغه خبره واورېده؛ ورته يې دومره اهميت ورنه کړ، او داسې يې وګڼله چې د يوه ځلمي له لاسه به څه وشي؟ او دی به د ټول قوم معبودانو ته څه ضرر وررسولی شي؟.

فَجَعَلَهُمْ جُذٰذًا اِلَّا كَبِيْرًا لَّهُمْ لَعَلَّهُمْ اِلَيْهِ يَرْجِعُوْنَ ﴿٥٨﴾

پس ويې ګرځول دا بُتان ټوټې ټوټې مګر لوی د دې بُتانو (چې مات يې نه کړ، او تبر يې په اوږه ورته کېښود) لپاره د دې چې دوی هغه ته بېرته راشي (او ترې پوښتنه وکړي).

**تفسير:** څه مهال (وخت) چې دا خلق ټول له ښاره د باندې مېلې ته لاړل، نو ابراهيم عليه السلام بت خانې ته ورننوت، ټول بُتان يې سره مات ګوډ کړل، او يواځې هم هغه بُت يې روغ جوړ پرېښود؛ چې د نورو په نسبت د جُثې يا د تعظيم او تکريم په اعتبار د کفارو په ګومان لوی وو، او په هغه تبر يې چې دغه بُتان مات کړي وو؛ هغه يې د هم هغه لوی بُت په اوږه باندې کېښود، څو چې خلق بېرته راشي، او دغه وضعيت وګوري نو په قدرتي ډول به د دوی په زړونو کې دغسې يو خيال پيدا شي چې دغه کار همدغه لوی بُت کړی دی، يا الزامًا ابراهيم عليه السلام ته رجوع وکړي.

(کفارو له مېلې نه د بېرته راګرځېدو او د خپلو بُتانو د کنډوکپر کېدلو څخه وروسته):

قَالُوْا مَنْ فَعَلَ هٰذَا بِاٰلِهَتِنَآ اِنَّهٗ لَمِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٥٩﴾

وويل دوی: چا کړی دی دا کار په معبودانو ځمونږ، بېشکه چې دی خامخا له ظالمانو دی (په دې کار کې).

**تفسير:** يعنې دا د سپين سترګی او بې ادبی حرکت ځمونږ له معبودانو سره چا کړی دی؟ يقينًا هر چا چې دا کار کړی دی، هغه (أستغفر الله) لوی ظالم او غټ شرير دی، دا خبرې به هغو کسانو کړي وي چې د هغوی غوږونو ته د ﴿وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ اَصْنَامَكُمْ﴾ غږ نه وي رسېدلی.

قَالُوْا سَمِعْنَا فَتًى يَّذْكُرُهُمْ يُقَالُ لَهٗٓ اِبْرٰهِيْمُ ﴿٦٠﴾

وويل (ځينو کفارو) چې اورېدلي وو مونږ له يوه ځلمي څخه چې يادول به يې دا بُتان (په بدۍ سره) چې ويلی شي ده ته ابراهيم.

**تفسير:** دا ويونکي به هغه کسان وي چې د ابراهيم عليه السلام ﴿وَتَاللّٰهِ لَاَكِيْدَنَّ اَصْنَامَكُمْ﴾ جمله يې اورېدلې وه، يعنې هم هغه يو ځلمی دی چې ځمونږ د معبودانو ذکر په بدۍ سره کوي، يقينًا دا کار به هم هغه کړی وي.

قَالُوْا فَاْتُوْا بِهٖ عَلٰٓى اَعْيُنِ النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَشْهَدُوْنَ ﴿٦١﴾

وويل (نمرود او مشرانو يې) چې راولئ هغه (ابراهيم) په مخکې د سترګو د خلقو (چې ويې وينئ) ښايي چې دوی ووينې (هغه، او په کولو د دې کار پرې شاهدي ورکړي).

**تفسير:** يعنې هغه راولئ ! او د دغه عمومي مجمع په مخکې ترې اقرار واخلئ، څو په دغه خبره ټول خلق خبر او دغه معامله ټولو ته ښکاره شي، او د ده وينا هر څوک واوري او پرې شاهدان شي، چې د هغې په مقابل کې د قوم له طرفه داسې يوه سزا ورته مقرّره شي چې دی يې مستحق وي، دا خو د هغوی غرض وو، او د ابراهيم عليه السلام مقصد به

هم ښايي همدا شی وو، چې همداسې په يوه لويه مجمع کې ماته موقع راکړی شي څو زه په هغه کې مشرکان پړ او ملامت کړم، او د خلقو په وړاندې د حق او حقانيت د غلبې اظهار وکړی شم.

(نو کله چې ابراهيم عليه السلام يې راوست؛ دغه لاندينی پوښتنې يې ترې وکړې):

قَالُوٓا۟ ءَأَنتَ فَعَلْتَ هَٰذَا بِـَٔالِهَتِنَا يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ ﴿٦٢﴾ قَالَ بَلْ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا فَسْـَٔلُوهُمْ إِن كَانُوا۟ يَنطِقُونَ ﴿٦٣﴾

وويل (بابليانو) آيا تا کړی دی دا کار په معبودانو څمونږ ای ابراهيمه؟. وويل (ابراهيم): بلکه کړی دی دا کار مشر د دوی چې دا دی، نو پوښتنه وکړئ تاسې له دوی که وي دوی چې خبرې کوي (چې چا ټوټې ټوټې کړي يئ؟).

تفسير: يعنې هيڅ ضرورت نشته، چې له ما څخه د دې خبرې پوښتنې وکړئ، بلکه داسې فرض کړئ چې دا لوی غټ بُت چې روغ رمټ جوړ ولاړ دی، او د ماتولو آله هم ورسره شته، دا کار به همده کړی وي، او دا دی د بحث او تحقيق په وخت کې د الزام او پړوالي په ډول زه دغسې دعوی کوم، چې دغه لوی بُت دا ټول کوچني (واړه) بُتان سره ګوډ مات کړي دي.

تنبيه: څمونږ له دې تقرير څخه څرګنده شوه چې د ﴿بَلْ فَعَلَهُۥ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا﴾ وينا د اخبار په ډول له واقعي مخالفه نه وه چې ورته حقيقتًا دروغ وويل شي، بلکه د دوی د تحميق او تجهيل لپاره د يو فرضي احتمال په شان د دعوی په صورت د تعريض او الزام په ډول کلام شوی دی، لکه چې بالعموم په مباحثو او مناظرو کې همداسې واقع کيږي، نو دې ته مونږ دروغ نشو ويلی، هو ! ظاهرا د دروغو په صورت راښکاري، نو ځکه په ځينو احاديثو کې پرې د (کذب) د لفظ اطلاق صورتًا شوی دی، مفسّرينو د دې په توجيه نور څه مجمل بيان هم کړی دی، مګر څمونږ دغه تقرير ښه او زيات صاف او بې تکلّفه او روايتونو ته ډېر نژدې ښکاري (والله تعالی أعلم).

فَرَجَعُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَنفُسِهِمْ فَقَالُوٓا۟ إِنَّكُمْ أَنتُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٦٤﴾

پس رجوع وکړه (دغو کفّارو په فکر کولو سره) نفسونو خپلو ته، نو وويل (ځينو ځينو نورو ته:) بېشکه تاسو يئ ظالمان.

تفسير: يعنې وپوهېدل چې د بېکاره تيږو (ګټو) د عبادت کولو څخه څه فائده حاصليږي، يا به دا مطلب وي چې تاسې په خپله پر خپلو ځانونو ظلم کړی دی، چې د ابراهيم عليه السلام د انذار اورېدلو سره سره بُت خانه مو هم هغسې خوشې پرانستلې پرېښوده، او ترې لاړئ، او د خپلو معبودانو د حفاظت او ساتنې هيڅ فکر او تدبير مو ونه کړو، كذا قال ابن كثير رحمه الله.

ثُمَّ نُكِسُوا۟ عَلَىٰ رُءُوسِهِمْ

بيا نسکور کړل شول دوی پر سرونو خپلو (يعنې شرمنده شول، خو سره له هغه هم ابراهيم عليه السلام د مجادلې لپاره يې ملاوې وتړلې).

تفسير: يعنې له ډېره شرمه يې خپلې سترګې نشوې پورته کولې، او يو بل ته به يې له سره نشو کتلی، خو سره له هغه يې ابراهيم عليه السلام ته داسې وويل:

لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هٰٓؤُلَآءِ يَنْطِقُوْنَ ﴿٦٥﴾

چې خامخا په تحقیق پوه يې ته چې نه دي دا بُتان (قابل د دې) چې وغږيږي (نو څرنګه مونږ ته له دوی څخه د سوال کولو امر کوې).

قَالَ اَفَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكُمْ شَيْـًٔا وَّلَا يَضُرُّكُمْ ﴿٦٦﴾ اُفٍّ لَّكُمْ وَلِمَا تَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٦٧﴾

نو وويل (ابراهيم عليه السلام) نو آيا پس تاسې عبادت كوئ بې له الله څخه د هغه شي چې نه نفع رسوي تاسې ته د هيڅ شي، او نه ضرر رسولی شي تاسې ته (د هيڅ شي). نو افسوس (او هلاكت) دی تاسې ته او هغه ته چې عبادت يې كوئ بې له الله، نو آيا نه لرئ تاسې دومره عقل هم (چې د خپلو افعالو په قباحت او بدۍ وپوهيږي).

**تفسير:** يعني تاسې ته ښايي چې له ډېره شرمه ومرئ، هغه بُت چې يو لفظ هم نشي ويلی او نه د كوم احتياج په وخت كې مو په كار راځي، او نه مو مدد كولی شي، او د يوې ذرې په اندازه نه څه نفع او نه څه ضرر دررسولی شي، او نه يې څه په واك او اختيار كې شته، هغو ته مو د ألوهيت درجه وركړې ده، آيا په دومره غټه خبره هم نشئ پوهېدی؟.

(كله چې نمروديان له مجادلې څخه عاجز شول، د ابراهيم عليه السلام په سوځولو پسې شول)

قَالُوْا حَرِّقُوْهُ وَانْصُرُوْٓا اٰلِهَتَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿٦٨﴾

وويل (نمروديانو) وسوځوئ تاسې دغه (ابراهيم) او مرسته وكړئ تاسې د معبودانو خپلو كه چېرې يئ تاسې كوونكي (د دې مرستې خپلو بُتانو سره).

تفسير: يعني په بحث او مناظره يې نشو پر كولی، اوس يواځې همدغه يو صورت پاتې دی، او هغه دا دی چې: مونږ له خپلو معبودانو سره چې نه يواځې ځمونږ سره بلكه له خپلو ځانونو سره هم مرسته نشي كولی؛ مرسته وكړو، او د دوی دښمن ته ډېره سخته سزا وركړو، كه مونږ داسې ونشو كړی؛ نو ګواكې هيڅ كار مو نه دی كړی.

لكه چې د دغې مشورې سره سم غوڅه شوه چې ښايي ابراهيم عليه السلام په اور كې وسوځول شي، ګواكې څرنګه چې ابراهيم عليه السلام د بُتانو په ماتولو د دوی زړونه سوځولي وو، دوی هم د هغه په بدل كې د ده د سوځولو تجويز غوره كړ، بالآخره دغه ګرد ظالمان سره ټول شول، او په ډېر اهتمام او بې رحمۍ سره يې ابراهيم عليه السلام په ډېر لوی لمبې وهونكي او سخت سوځوونكي اور كې وغورځاوه.

(كله چې دوی ابراهيم په اور كې وغورځاوه؛ د الله تعالى له لوري داسې حكم وشو:)

قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿٦٩﴾

وويل مونږ: ای اوره ! شه يخ او خاوند د سلامتيا پر ابراهيم باندې.

**تفسير:** يعني اور ته تكويني حكم وشو، چې په ابراهيم عليه السلام يخ شه ! مګر دومره يخ هم مه شه ! چې له ډېرې يخنۍ څه تكليف ورته ورسيږي، بلكه داسې برابر او معتدله شه، چې د هغه ځان ښه په راحت شي.

تنبيه: د اور يخېدل پر ابراهيم عليه السلام باندې د ده معجزه وه، د معجزې حقيقت هم دا دى چې الله تعالى د خپل عادت پر خلاف عادي سبب له مسببه او مسبب له سبب څخه بېل کړي.

دلته د احراق سبب (اور) موجود وو، مگر مسبب پرې مرتب نه شو.

وَأَرَادُوا بِهِۦ كَيْدًا فَجَعَلْنَٰهُمُ ٱلْأَخْسَرِينَ ﴿٧٠﴾

او غوښتل (نمرود) پر ابراهيم کيد (مکر د سوځولو)؛ نو وگرځول مونږ دوى سخت زيانکاران (چې پخپل فعل کې کامياب نشول).

تفسير: يعنې دوى د ابراهيم عليه السلام بد غوښتل، ليکن دوى په خپله په ناکامى، ذلت او زيان کې پرېوتل، د حق صداقت په ښکاره صورت څرگند شو، او د الله تعالى کلمه لوړه (اوچته) او عُليا وگرځېده.

وَنَجَّيْنَٰهُ وَلُوطًا إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا لِلْعَٰلَمِينَ ﴿٧١﴾

او نجات مو ورکړ دغه (ابراهيم) ته او لوط ته (او بومو تلل دواړه، چې ځئ له عراقه) ځمکې هغې ته چې برکت اچولى وو مونږ په هغې کې لپاره د خلقو (چې شام دى).

تفسير: يعنې ابراهيم مو سره د لوط عليهما السلام صحيح او سالم روغ رمټ د شام ملک ته بوتلل، چې هلته ډېر ظاهري او باطني برکات د وديعت په ډول ايښودل شوي دي.

وَوَهَبْنَا لَهُۥٓ إِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً ۖ وَكُلًّا جَعَلْنَا صَٰلِحِينَ ﴿٧٢﴾

او وموبښل دغه (ابراهيم) ته (ځوى) اسحاق او (لمسى) يعقوب زيات (سربېره د ځوى پر غوښتنې د انعام په ډول)، او دغه ټول گرځولي دي مونږ نېکان (چې خلقو ته يې لارښوونه کوله.)

تفسير: په زوړ والى کې يې هلک غوښتى وو مونږ لمسى هم ورکړ يعنې يعقوب عليه السلام، او دا ټول يعنې ابراهيم، لوط، اسحاق، يعقوب عليهم السلام په اعلى درجه سره له نېکو بندگانو څنې دي، ځکه چې گرد د الله تعالى انبياء دي، او له انبياوو څخه پورته بل څوک نېک او ښه کېدى نشي.

وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا

او گرځولي وو مونږ دوى (داسې) امامان چې سمه صافه لاره يې ښووله په حکم ځمونږ سره (خلقو ته).

وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِمْ فِعْلَ ٱلْخَيْرَٰتِ وَإِقَامَ ٱلصَّلَوٰةِ وَإِيتَآءَ ٱلزَّكَوٰةِ ۖ

او وحي کړې وه مونږ دوى ته د کولو د خيراتونو (نېکو کارونو) او د قائمولو (سم اداء کولو) د لمانځه او د ورکولو د زکات.

تفسير: يعنې هغوى ته مو وحي لېږلې وه، چې په هغې کې د دغو امور تأکيد هم وو، څو نه يواځې دوى عاملان شي، بلکه نور خلق هم د هغو ښو اعمالو په کولو باندې وگماري، دغه د دوى علمي کمال شو.

وَكَانُوا۟ لَنَا عَٰبِدِينَ ﴿٧٣﴾

او وو دوی (ټول) خاص مونږ ته عبادت کوونکي.

**تفسیر:** یعني شپه او ورځ به ځمونږ په بندګۍ او عبادت کې بوخت (مشغول) وو، بل کوم طرف ته به یې سترګې نه اړولې، دغه د دوی عملي کمال شو، نو تاسې ای عربو چې د ابراهیم علیه السلام اولاد یئ، او د هغه د متابعت دعوی کوئ، ولې د هغو د دې علمي او عملي کمالاتو متابعت نه کوئ، بلکه حقیقتًا یې تابعان شئ !.

وَلُوطًا ءَاتَيْنَٰهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَنَجَّيْنَٰهُ مِنَ ٱلْقَرْيَةِ ٱلَّتِى كَانَت تَّعْمَلُ ٱلْخَبَٰٓئِثَ ۗ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ فَٰسِقِينَ ﴿٧٤﴾

او لوط ته ورکړی وو مونږ ده ته حکم (نبوّت) او پوهه، او نجات ورکړی وو مونږ دغه (لوط) ته له (خلقو د) کلي هغه چې وو هغوی چې کول به یې عملونه خبیث ناپاکه، بېشکه چې هغوی وو قوم د بدۍ نافرمان.

**تفسیر:** له کلي څخه مراد «سدوم» او بلکه د هغه ملحقات دي، د دې ځای خلق په خلاف الفطرت کارونو مبتلا وو، د دوی قصه پخوا څو ځایه تېره شوې ده.

وَأَدْخَلْنَٰهُ فِى رَحْمَتِنَآ ۖ إِنَّهُۥ مِنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٧٥﴾

او داخل کړی وو مونږ دی په رحمت خپل کې، بېشکه دی له نېکانو څخه دی.

**تفسیر:** یعنې کله چې د لوط پر قوم باندې مو عذاب نازل کړ؛ نو لوط مو د خپلو ملګرو سره د خپلې مهربانۍ او رحمت په څادر کې پټ کړ، څو د نېکانو او بدانو عاقبت او انجام بېل بېل سره څرګند شي.

وَنُوحًا إِذْ نَادَىٰ مِن قَبْلُ فَٱسْتَجَبْنَا لَهُۥ فَنَجَّيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥ مِنَ ٱلْكَرْبِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٧٦﴾ وَنَصَرْنَٰهُ مِنَ ٱلْقَوْمِ ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَآ ۚ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ قَوْمَ سَوْءٍ فَأَغْرَقْنَٰهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٧٧﴾

او (یاد کړه ای محمده ! قصه د) نوح کله چې غږ یې وکړ (په ښېرا د قوم خپل) پخوا (له دغو مذکورو انبیاوو ـ یعنې پخوا له ابراهیم او لوط علیهما السلام څخه)، پس قبول کړ مونږ ده ته (سوال د ده)، نو نجات ورکړ مونږ ده ته او کورنی د ده ته له غمه لویه (چې د طوفان وېره او د کافرانو ضرر وو). او مرسته مو وکړه له ده سره (په انتقام اخیستو د ده) له قومه هغه چې نسبت د دروغو یې کړی وو آیتونو ځمونږ ته، بېشکه دوی وو قوم بد (ناکاره)؛ نو غرق کړل مونږ دوی ټول.

**تفسیر:** نوح علیه السلام تر نهه نیم سوو کلونو پورې خپل قوم وپوهاوه، او په دومره اوږده موده کې یې ډېرې سختۍ برداشت کړې، بالآخره په تنګ راغی، او داسې دعاء یې وکړه: ﴿أَنِّى مَغْلُوبٌ فَٱنتَصِرْ﴾ (٢٧ جزء، د القمر سورت (١٠) آیت، (١) رکوع)، او ﴿رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى ٱلْأَرْضِ مِنَ ٱلْكَٰفِرِينَ دَيَّارًا﴾ (٢٩ جزء د نوح د سورت (٢٦) آیت (٢) رکوع)، نو الله تعالی دغه دعاء قبوله کړه، او کفار یې په طوفان غرق کړل، او نوح علیه السلام یې د خپلو ملګرو سره د طوفان له هیبته او د کفارو له ضرر رسولو څخه صحیح او سلامت وویست، دغه قصه په مفصّل ډول پخوا تېره شوې ده.

وَدَاوُدَ وَسُلَيْمَٰنَ إِذْ يَحْكُمَانِ فِي الْحَرْثِ إِذْ نَفَشَتْ فِيهِ غَنَمُ الْقَوْمِ وَكُنَّا لِحُكْمِهِمْ شَٰهِدِينَ ﴿٧٨﴾ فَفَهَّمْنَٰهَا سُلَيْمَٰنَ وَكُلًّا ءَاتَيْنَا حُكْمًا وَعِلْمًا

او (یاد کړه ای محمده ! قصه د) داود او سلیمان کله چې حکم کاوه هغو دواړو په (دعوی او نزاع د) کښت (فصل)، کله چې د شپې ګډه شوې وه (بې له شپانه) په هغه (کښت) کې رمه د (هغه) قوم، او وو مونږ حکم د دوی ته حاضر. پس ومو پوهوه په هغه (فتوی، فیصله) سلیمان، او هر یو د دوی دواړو ته ورکړی وو مونږ حکم (نبوّت) او پوهه.

تفسیر: داود علیه السلام د الله تعالی نبي وو، سلیمان علیه السلام د ده ځوی او هم د پاک الله تعالی نبي وو، دغه پلار او ځوی ته الله تعالی پرته له نبوّته حکومت، علم، حکمت، د فهم قوت، او د فیصلو قدرت هم وربخښلی وو، سلیمان علیه السلام لا په هلکتوب کې داسې فوق العاده پخې خبرې او ښایسته ویناوې کولې، چې ټول اوریدونکي به ورته حیران پاتې کېدل.

د داود علیه السلام حضور ته داسې یوه دعوی وړاندې شوه، چې د یوه سړي په کښت (فصل) کې د نورو خلقو مېږې (ګډې) د شپې ګډې شوې وې، او د هغه کښت یې تر پښو لاندې او زیانمن کړی وو، کله چې داود علیه السلام په دغه دعوی کې غور وکړ؛ ورښکاره شوه چې د دغو مېږو قیمت د هغه نقصان سره برابر او معادل دی چې هغه کښت ته رسول شوی دی، نو داسې فیصله یې صادره کړه چې: «دغه مېږې دې د کښت خاوند ته ورکړی شي !»، سلیمان علیه السلام وویل چې ځما: «نظریه او فیصله دا ده چې: دغه د کښت خاوند دې دغه مېږې له خپله ځانه سره وساتي، او شودې دې وخوري، او د مېږو خاوند دې د کښت خدمت وکړي، تر څو چې کښت خپل رومبي حالت ته ورسیږي، نو په دغه وخت کې دې مېږې بېرته خپل خاوند او کښت خپل خاوند ته وسپارل شي، نو په دې ترتیب او صورت سره به دواړه له نقصانه وژغورل (وساتل) شي»، داود علیه السلام چې دا فیصله واورېده؛ نو آفرین یې ورته وویل، او د خپل اجتهاد نه وګرځېد.

وَسَخَّرْنَا مَعَ دَاوُدَ الْجِبَالَ يُسَبِّحْنَ وَالطَّيْرَ

او تابع کړي وو مونږ له داود سره غرونه چې تسبیح به یې ویلې، او (همداسې تابع کړي وو مونږ) مرغان هم (چې تسبیح به یې ورسره ویلې).

تفسیر: داود علیه السلام د ډېر ښه غږ او د خواږه آواز خاوند وو، د نبوّت په هغه مؤثر او اغېزناک غږ چې ده په خپل طبیعي جوش سره زبور شریف لوست، یا د پاک الله په تسبیح او تحمید کې مشغولېده؛ نو غرونو، مرغانو او نورو حیواناتو به هم د هغه د غږ په متابعت په لوستلو پیل (شروع) کاوه.

وَكُنَّا فَٰعِلِينَ ﴿٧٩﴾

او وو مونږ کوونکي (د داسې کارونو).

تفسیر: یعني تعجب مه کوه چې تیږي (ګټې) او مرغان به څرنګه تهلیل او تسبیح وایي، دغه ټول کارونه مونږ لا پخوا کړي وو، ښه ! ځمونږ د لامحدود قدرت له مخې آیا دغه خبرې څه مشکلې او مستبعدې ګڼلی کېدی شي؟ بلکه نه، نشي کېدی.

وَعَلَّمْنَٰهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّنۢ بَأْسِكُمْ ۖ فَهَلْ أَنتُمْ شَٰكِرُونَ ﴿٨٠﴾

او ښوولی وو مونږ دغه (داود) ته جوړول د زغرې تاسې ته، لپاره د دې چې وساتي تاسې (دا زغره ای انسانانو) له ضرره د جنګ (د دښمنانو) ستاسې، پس آیا یئ تاسې شکر کوونکي (یعنې شکر وکړئ).

تفسیر: الله تعالی د داود علیه السلام په لاس کې اوسپنه د موم په شان پسته او نرمه ګرځولې وه، ده به هغه سره تاووله او نهایتې سپکې مضبوطې او ښکلې زغرې به یې جوړولې، چې د جنګ په وخت کې به ترې کار اخیست کېده.

وَلِسُلَيْمَٰنَ ٱلرِّيحَ عَاصِفَةً تَجْرِى بِأَمْرِهِۦٓ إِلَى ٱلْأَرْضِ ٱلَّتِى بَٰرَكْنَا فِيهَا ۚ

او (تابع کړی وو مونږ) سلیمان ته باد توند (تېز) چې روانېده په حکم د ده (سلیمان او رساوه به یې) ځمکې (د شام ته) هغې ته چې برکت اینښی وو مونږ په هغې کې.

تفسیر: سُلیمان علیه السلام داسې دعاء کړې وه: ﴿رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِيٓ ۖ﴾ (٢٣ جزء د ص د سورت (٣٥) آیت (٣) رکوع)؛ نو الله تعالی هوا او پیریان د ده تابع کړي وو، سُلیمان علیه السلام داسې یو تخت تیار کړی وو، چې د دولت له اعیانو او مشرانو سره به پرې کېناسته، او ضروري لوازم او سامان به یې هم له خپل ځان سره اخیستل، بیا به هوا راتله، او هغه تخت به یې په ډېره چابکۍ پورته کاوه، کله چې به هغه په مناسبه اندازه له ځمکې څخه پورته کېده، بیا به هوا نرمېده او له ضرورت سره سم به کمی او زیاتی په کې پیدا کېده، لکه چې د (ص سورت په (٣٦) آیت (٣) رکوع (٢٣) جزء) کې راغلي دي: ﴿رُخَآءً حَيْثُ أَصَابَ﴾ له «یمن» څخه «شام» ته او له «شام» څخه «یمن» ته چې د یوې میاشتې لاره ده، په (٥) ګړیو (ګېنټو) کې رسېده، تعجّب دی چې د نن ورځې د عجیبو او غریبو هوایي جهازونو په زمانه کې هم ډېر منحرفین له دې ډول واقعاتو څخه انکار کوي، آیا هغه کار چې نن ورځ یې اوروپا د بخار او برق او نورو په ذریعه کولی شي، الله تعالی یې د خپل یو نبي لامله په خپل قدرت سره نشي کولی؟ بلکه کولی یې شي.

وَكُنَّا بِكُلِّ شَىْءٍ عَٰلِمِينَ ﴿٨١﴾

او یو مونږ په هر شي عالمان.

تفسیر: یعنې چې چا ته څه قسم امتیاز ورکول مناسب دي، او له هوا او له نورو عناصرو څخه په څه ډول سره کار اخیستل کېدی.

وَمِنَ ٱلشَّيَٰطِينِ مَن يَغُوصُونَ لَهُۥ وَيَعْمَلُونَ عَمَلًا دُونَ ذَٰلِكَ ۖ

او (تابع کړي وو مونږ ده ته) ځینې له شیطانانو څخه هغه چې غوټې به یې وهلې (په سیند کې) د ده لپاره، او کول به یې (نور ډېر) کارونه بې له دې نه.

تفسیر: له شیاطینو څخه مراد سرکښ پیریان دي، دوی د سُلیمان علیه السلام له لوري مأمور وو، چې په لویو لویو سیندونو کې غوټې ووهي، او مرغلرې، جواهر او نور بحري حاصلات د هغو له تل څخه راوکاږي، او په دغو پیریانو په ودانیو او نورو عمراني کارونو کې سخت او درانه کارونه وکړي، د یوه لوی حوض په اندازه د مسو لګنونه (خانکونه) او لوی لوی دېګونه به یې پرې جوړول، چې له سره به له خپله ځایه چا نشو خوځولی، او له یوه ځایه بل ځای ته به یې پرې وړل او بارول، او لاندې باندې به یې سره کول، او له ډېرو سختو څخه سخت کارونه به یې ترې اخیستل.

وَكُنَّا لَهُمْ حٰفِظِيْنَ ﴿٨٢﴾

او وو مونږ دوی لره ساتونکي (له فساد څخه).

تفسیر: يعني مونږ په خپل کامل قدرت دغه شياطين په داسې شان سليمان عليه السلام په قبضه او قيد کې ټينګ، مضبوط او بند ساتلي وو، چې هر څه يې غوښتل هغه به يې ورباندې د بيګار په ډول کول، او دوی له سره سليمان عليه السلام ته هيڅ يو ضرر نشو رسولی، که نه د بنيادم به څه زور او قوت وي؟ چې داسې يو شرير مخلوق په خپله قبضه کې په سختو ځنځيرونو کې بند وساتي: ﴿وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ﴾ (۲۳ جزء، د (ص) د سورت (۳۸) آيت، (۳) رکوع).

وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ ﴿٨٣﴾ فَاسْتَجَبْنَا لَهٗ فَكَشَفْنَا مَا بِهٖ مِنْ ضُرٍّ وَّاٰتَيْنٰهُ اَهْلَهٗ وَمِثْلَهُمْ مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِنَا

او (ياد کړه ای محمده ! قصه د) ايّوب چې ندا غږ يې وکړ رب خپل ته چې بېشکه زه رسېدلی دی ماته ضرر (رنځ او سختي په بدن کې) او ته ډېر مهربان يې له ټولو مهربانانو څخه. پس قبوله کړه مونږ دعاء د ده، پس لرې کړ مونږ هغه چې وو په ده باندې له (بدني او مالي) ضرره، او ورکړ مونږ دغه (ايّوب) ته اهل د ده، او په مثل د هغوی له هغوی سره په رحمت سره له نزده ځمونږ.

تفسیر: أيّوب عليه السلام ته الله تعالی په دنيا کې له هر حيثه ارامي او هوسايي (راحت) ورکړې وه: ځمکه، کښت (فصل)، مال مالداري، مريان، وينځې، صالح اولاد او په زړه پورې ښځه يې ورکړې وه، أيوب عليه السلام د الله تعالی لوی شکر کوونکی بنده وو، ليکن الله تعالی دی په ابتلاء او ازموينه کې واچاوه، کښتونه يې وسوځېدل، رمې او ګلې يې تباه شوې، اولاد يې مړه شول، ټول دوستان آشنايان او خپلوان ترې بېل شول، د ده په وجود سختې دانې وختلې، له دغومره مالونو، شتو، نوکرانو، خپلو او خپلوانو څخه يوازې د ده يوه ښځه ورسره ملګرې پاتې وه، بالآخره دغه خواره هم سترې ستومانه او زړه تنګې شوه، مګر ايوب عليه السلام همغسې چې په نعمت کې د پاک الله شکر کوونکی بنده وو، په زحمت او ابتلاء کې هم صابر پاتې شو، کله چې د ده تکليف او اذيت او د دښمنانو شماتت له حده تېر شو؛ نو دلته أيوب عليه السلام لاس په دعا شو چې: ﴿وَاَيُّوْبَ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَاَنْتَ اَرْحَمُ الرّٰحِمِيْنَ﴾ همدا چې ده د خپل رب په دربار کې دا سوال وکړ؛ سمدلاسه د رحمت سيند په جوش او چپو شروع وکړه، الله تعالی ده ته د مړو اولادونو پر ځای يو په دوه اولادونه ورکړل، او د ځمکې څخه يې چينه راويستله، أيوب عليه السلام له هغې څخه اوبه وڅښلې، او هم يې ورباندې ولمبل، سمدلاسه روغ رمټ شو، او ټول تکليفونه يې لرې شول، لکه چې په حديث کې راغلي دي: د سرو زرو ملخان يې ورباندې وورول، لنډه دا چې له هر حيثه ورته د ارامتيا اسباب برابر شول.

وَذِكْرٰى لِلْعٰبِدِيْنَ ﴿٨٤﴾

او نصيحت لپاره د عبادت کوونکو (هر څوک چې داسې صبر کوي؛ همداسې نتيجه به هم مومي).

تفسیر: يعني په أيّوب عليه السلام د دغې مهرباني کېدلو په اثر بندګي کوونکو ته لوی پند او نصيحت او يو مهم يادګار پاتې شو، چې هر کله چې په کوم يو نېک بنده په دنيا کې کومه تنګسه يا مصيبت راشي، ښايي چې د ايّوب عليه السلام په شان صبر، استقامت، ثبات او استقلال وښيي، او يوازې خپل پروردګار ته دعاء او نداء وکړي؛ يقين دی چې الله تعالی به پرې د عنايت نظر وکړي، او يوازې د داسې يوې ابتلاء له ليدلو څخه نه ښايي چې څوک داسې ګومان وکړي، چې البته دغه بنده د الله تعالی په دربار کې مبغوض دی.

وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِدْرِيسَ وَذَا ٱلْكِفْلِ ۖ كُلٌّ مِّنَ ٱلصَّٰبِرِينَ ۝٨٥

او (یاد کړه ای محمده ! قصه د) اسماعیل او ادریس او ذوالکفل، دغه ټول دي له صبر کوونکو څخه (په طاعت او مصیبت او له معصیت څخه).

تفسیر: یعني دغه نېک بنده ګان مې یاد کړئ !، د اسماعیل او ادریس علیهما السلام ذکر پخوا له دې نه د (مریم) په سورت کې تېر شو، د «ذوالکفل» په نسبت د علماوو کرامو په نظر کې اختلاف دی، چې هغه نبي او که یو صالح سړی وو؟ ابن کثیررحمه الله وایي چې: د قرآنکریم د سیاق نه دا څرګندیږي چې هغه نبي وو، ځکه چې د انبیاوو په ډله کې د هغه یادول وشو، او ځینې وایي چې: هغه یو صالح، عادل، او منصف پاچا وو، او «ابن جریر» په کې توقّف کړی دی.

وَأَدْخَلْنَٰهُمْ فِى رَحْمَتِنَآ ۖ إِنَّهُم مِّنَ ٱلصَّٰلِحِينَ ۝٨٦ وَذَا ٱلنُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَٰضِبًا فَظَنَّ أَن لَّن نَّقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادَىٰ فِى ٱلظُّلُمَٰتِ أَن لَّآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبْحَٰنَكَ إِنِّى كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ ۝٨٧

او داخل کړي وو مونږ دوی په رحمت خپل کې (چې نبوّت او جنت دی)، بېشکه چې دوی دي له صالحانو نېکانو کاملانو. او (یاد کړه ای محمده ! قصه د) خاوند د ماهي کله چې لاړ، حال دا چې په قهر وو (په قوم خپل)، پس ګمان یې وکړ چې له سره به نشو مونږ قادر په نیولو د ده (یا ګومان یې وکړ چې له سره به تنګي نه راولو په ده)؛ پس غږ یې وکړ په تیارو کې (داسې) چې نشته بل بر حق معبود مګر ته یې (یواځې)، پاکي ده تا ته له عیبونو، بېشکه چې زه وم له ظلم کوونکو څخه (په خپلو تللو کې بې له اذن څخه).

تفسیر: یونس علیه السلام ته یې «ذا النون ـ ماهي والا» وویل، چې لنډه قصه یې دا ده، الله تعالی یونس علیه السلام د «نینوی» د ښار په طرف چې د موصل له مربوطاتو څخه دی؛ مبعوث کړی وو، چې د هغه ځای خلق له بت پرستۍ څخه منع کړي، او د حق په طرف بلنه ورکړي، مګر هغوی له سره د یونس علیه السلام خبرو ته غوږ کېنښود، بلکه ورځ په ورځ د دوی عناد او تمرّد لا پسې زیاتېده، آخر یونس علیه السلام د هغوی په حق کې ښېرا وکړه، او دی پخپله د دوی له ناپاکو حرکاتو څخه خفه او ډېر په قهر او غضب سره له ښاره ووت، او د الله تعالی حکم ته یې انتظار ونه کړ، او له خپل قوم سره یې وعده وکړه چې درې ورځې وروسته به پر تاسې د الله تعالی عذاب نازل شي، د یونس علیه السلام د وتلو څخه وروسته د ده قوم وپوهېد، چې د نبي ښېرا بې اثره نه پاتې کیږي، او خامخا پر مونږ آفت نازلېدونکی دی، ممکن چې د عذاب څه آثار به همدوی ته ورڅرګند شوی وي، نو ځکه دوی ګرد سره وویرېدل، لوی واړه سره له حیواناتو له خپلو کورونو څخه ووتل، او په یوه ځنګل کې ننوتل، او میندې له کوچنیانو (بچو) څخه بېلې کړی شوې، او ګرد الله تعالی ته په ژړا او واویلا شول، او د دغه ښار ګردو خلقو په ډېر اخلاص او صداقت سره توبه وویستله، او ټول بُتان یې مات کړل، او د الله تعالی د اطاعت او عبادت کلک عهد یې وکړ، او د یونس علیه السلام په لټون کې شول، که چېرې مو وموند؛ نو د ده د حکم او ارشاد متابعت به کوو، نو الله تعالی هغه راتلونکی عذاب د دوی له سره ستون (واپس) کړ.

لکه چې په (۱۱ جزء د یونس د سورت په (۹۸) آیت (۱۰) رکوع) کې یې ویلي دي: ﴿فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ ءَامَنَتْ فَنَفَعَهَآ إِيمَٰنُهَآ إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ لَمَّآ ءَامَنُوا۟ كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ ٱلْخِزْىِ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا وَمَتَّعْنَٰهُمْ إِلَىٰ حِينٍ﴾.

کله چې یونس علیه السلام له خپلې قریې څخه ووت، او له یوې ډلې سره په یوې بېړۍ کې سور شو، کله چې دغه بېړۍ د سیند منځ ته ورسېده، د ډوبېدلو نښې په کې څرګندې شوې، بېړۍ چلوونکي د بېړۍ د سپکولو په چرت

(خيال) كې شو، او داسې يې غوښتل چې كوم يو سړى دې په سيند كې وغورځول شي؟ پچه (قرعه) يې واچوله، نو دغه پچه د يونس عليه السلام په نامه ووته، او دوه درې ځلې دغه وضعيت تكرار شو، خو هر ځل به د همدغه يونس عليه السلام په نامه پچه راوتله، د دغه وضعيت په ليدلو يونس عليه السلام خپل ځان سيند ته وغورځاوه، سمدلاسه يو ماهي راغى، او هغه يې ښوى (روغ) تېر كړ، الله تعالى ماهي ته حكم وركړ، چې يونس پخپله ګېډه كې محفوظ وساته، په دغه وخت كې يونس عليه السلام د الله تعالى په دربار كې داسې دعاء وكړه: ﴿لَآ إِلَٰهَ إِلَّآ أَنتَ سُبۡحَٰنَكَ إِنِّي كُنتُ مِنَ ٱلظَّٰلِمِينَ﴾ او په خپله خطا يې اعتراف وكړ، چې بېشكه ما تلوار وكړه، او ستا د حكم راتګ ته مې انتظار ونه كړ، او په خپل سر مې خپل امّت او د هغوى ښار پرې ښود.

بيا هغه ماهي د الله تعالى په اراده د سيند غاړې ته خپله خوله د باندې وويسته، او دى يې روغ رمټ له خپلې ګېډې څخه د باندې وغورځاوه، دى خپل قوم ته روغ او جوړ بېرته ورغى، او په خپله هم هغه مقدسه وظيفه مشغول شو.

﴿فَظَنَّ أَن لَّن نَّقۡدِرَ عَلَيۡهِ﴾ الآية ـ پس ګومان يې وكړ .. الخ، يعنې داسې خيال يې وكړ چې مونږ به په دغه حركت له ده څخه هيڅ يوه پوښتنه نه كوو.

فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ وَنَجَّيۡنَٰهُ مِنَ ٱلۡغَمِّۚ وَكَذَٰلِكَ نُـۨجِي ٱلۡمُؤۡمِنِينَ ﴿۸۸﴾

پس قبوله كړه مونږ دعاء د دغه (يونس)، او نجات مو وركړ دغه (يونس) ته له غمه (د سيند او ماهي)، او همداسې (چې يونس ته مو نجات وركړ)؛ نجات وركوو مونږ مؤمنانو ته.

**تفسير:** يعنې نجات د يونس عليه السلام سره مخصوص نه دى، هر هغه ايمان داره چې په همدغه شان مونږ وبولي، مونږ هغه ته هم له بلياتو څخه نجات وركوو، په احاديثو كې د دې دعاء ډېر فضيلت راغلى دى، او امّت د سختيو او مصيبتونو په وخت كې تل دغه دعا ډېره مجربه موندلې ده.

وَزَكَرِيَّآ إِذۡ نَادَىٰ رَبَّهُۥ رَبِّ لَا تَذَرۡنِي فَرۡدٗا وَأَنتَ خَيۡرُ ٱلۡوَٰرِثِينَ ﴿۸۹﴾

او (ياد كړه اى محمده ! قصه د) زكريا كله چې يې غږ وكړ رب خپل ته (داسې چې) اى ربه زما ! مه پرېږده ما يواځې (بې اولاده)، او ته يې غوره له (ګردو) وارثانو نه.

**تفسير:** يعنې داسې اولاد راكړې چې وروسته له ما د قوم دينې خدمت وكړى شي، او زما د دغو تعليماتو د خورولو د عهدې څخه ووتلى شي، لكه چې د مريم عليه السلام د سورت په تفسير كې مو ليكلي دي، كله چې زكريّا عليه السلام داسې وارث غوښته چې په: ﴿يَرِثُنِي وَيَرِثُ مِنۡ ءَالِ يَعۡقُوبَ﴾ (د مريم (۱) ركوع) كې مذكور دى، نو د هغه په تناسب سره يې الله تعالى هم په دغه نامه سره ياد كړ.

فَٱسۡتَجَبۡنَا لَهُۥ وَوَهَبۡنَا لَهُۥ يَحۡيَىٰ وَأَصۡلَحۡنَا لَهُۥ زَوۡجَهُۥٓۚ إِنَّهُمۡ كَانُواْ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِ
وَيَدۡعُونَنَا رَغَبٗا وَرَهَبٗاۖ وَكَانُواْ لَنَا خَٰشِعِينَ ﴿۹۰﴾

پس قبوله كړه مونږ دعاء د دغه (زكريّا) او ومو باښه دغه ته يحيى، او صالحه مو كړه ده ته ښځه د ده (د ولادت لپاره، له شنډوالي څخه وروسته)، بېشكه دغه (مذكور انبياء) وو دوى چې تلوار به يې كاوه په (كولو د نېكو عملونو او طلب) د خيراتونو، او بللو به يې مونږ له جهته د مينې (د ثواب)، او له جهته د وېرې (د عذاب)، او وو دوى خاص مونږ ته وېريدونكي متواضع.

تفسير: يعنې الله تعالى د زكريّا عليه السلام شنډه ښځه پخپل فضل او كرم سره د ولادت وړ (لايق) او قابله وګرځوله، ځينې متصوفين وايي: هر څوك چې پاك الله د خوف يا د توقع له امله ياد كړي؛ هغه اصلي محب نه دى، له دغه آيت نه د دغې مفكورې غلطي څرګندېږي، له انبياوو څخه پورته د الله تعالى محبّ څوك كېدى شي؟.

وَالَّتِيٓ أَحۡصَنَتۡ فَرۡجَهَا فَنَفَخۡنَا فِيهَا مِن رُّوحِنَا وَجَعَلۡنَٰهَا وَٱبۡنَهَآ ءَايَةٗ لِّلۡعَٰلَمِينَ ﴿٩١﴾

او (ياد كړه اى محمده ! قصه د) هغې (جينى مريمې) چې پاك يې ساتلى وو اندام خپل (له نكاح او له سفاح څخه)، پس پو كړ مونږ په (ګرېوان د) هغې كې له روحه خپله، او ومو ګرځوله دغه (مريمه) او ځوى د دې (عيسى) دليل (د كامل قدرت خپل) لپاره د خلقو.

تفسير: يعنې د بي بي مريمې رضي الله تعالى عنها په نس كې چې له نكاح او سفاح او له حلالو او حرامو دواړو طريقو څخه محفوظه وه، عيسى عليه السلام يې چې په «روح الله» سره ملقّب دى؛ پيدا كړو.

إِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمۡ أُمَّةٗ وَٰحِدَةٗ وَأَنَا۠ رَبُّكُمۡ فَٱعۡبُدُونِ ﴿٩٢﴾

په تحقيق دا ملّت (د توحيد ملّت او د اسلام دين) ستاسې ملّت يو دى (چې په دغه دين متفق دي ټول انبياء)، او زه رب ستاسې يم پس عبادت كوئ ځما (خاص نه د بل).

تفسير: يعنې الله تعالى يو دى، او ستاسې د دين اصول هم يو دي، ټول انبياء عليهم السلام هم د دين په اصولو كې داسې سره يو دي؛ چې هر هغه تعليم چې يو يې وركوي، هغه بل هم د هغه تصديق او تاييد كوي، كوم اختلافات چې په فروعو كې د زمانې او مكان د اختلاف له كبله منځ ته راځي، هغه عين مصلحت او حكمت دى، مذموم اختلاف هغه دى چې په اصولو كې وي، نو ځكه لازمه ده چې ټول سره په ګډه د الله جل جلاله بندګي وكړو، او په كومو اصولو كې چې ټول انبياء سره متّفق دي؛ هغه ټول په يو طاقت ټينګ ونيسو.

وَتَقَطَّعُوٓاْ أَمۡرَهُم بَيۡنَهُمۡۖ

او ټوټې ټوټې كړ (دغو پخوانيو امتونو) كار (د دين) خپل په منځونو خپلو كې.

تفسير: مونږ خو د اصولو په اعتبار ټولو ته يو دين وركړى وو، خو خلقو په كې پخپله اختلاف پيدا كړ، او هغه دين يې سره ټوټې ټوټې كړ، او پخپلو كې يې سره نفاق او شقاق پيدا كړ.

كُلٌّ إِلَيۡنَا رَٰجِعُونَ ﴿٩٣﴾

ټولې فرقې مونږ ته راتلونكي دي (نو جزا به وركړو دوى ته).

تفسير: يعنې كله چې ځمونږ حضور ته راشي؛ نو ټول اختلافونه به هلته سره فيصله شي، هر يوه ته به د هغه د عملونو جزاء وركړى شي، چې تفصيل به يې په راتلونكي آيت كې راشي.

فَمَن يَعۡمَلۡ مِنَ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَهُوَ مُؤۡمِنٞ فَلَا كُفۡرَانَ لِسَعۡيِهِۦ وَإِنَّا لَهُۥ كَٰتِبُونَ ﴿٩٤﴾

پس هر څوك چې عمل وكړي له نېكو (كارونو) څخه حال دا چې دى مؤمن وي؛ نو نشته بې قدري ضياع د كوښښ د ده (او زيار «محنت» يې نه ضايع كيږي)، او بېشكه مونږ دغه (كوښښ د ده) لره ليكونكي يو.

تفسير: يعنې د هيڅا محنت او زيار نه ضايع کيږي، د نېکۍ خوږه مېوه به مؤمنانو ته ورسيږي، هيڅ يوه نيکي به هم نه ضايع کيږي، هر وړوکی او لوی عمل مونږ د دوی په عملنامه کې ليکو، چې د قيامت په ورځ کې به پرانستلی شي.

وَحَرٰمٌ عَلٰى قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَآ اَنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿۹۵﴾ حَتّٰٓى اِذَا فُتِحَتْ يَاْجُوْجُ وَمَاْجُوْجُ وَهُمْ مِّنْ كُلِّ حَدَبٍ يَّنْسِلُوْنَ ﴿۹۶﴾

او حرام (منع) دی پر (اهل د) هر هغه کلي چې هلاک کړي دي مونږ دوی لره (دا کار) چې بېشکه دوی به نه راځي بېرته (مونږ ته د جزاء يا چې راشي بېرته دنيا ته د توبې او معذرت لپاره).
تر هغه پورې کله چې پرانستلي شي يأجوج او مأجوج (او دېوال يې له مخه لرې شي)، او دوی به له هرې لوړې (اوچتې) څخه ګړندي راکوزيږي.

تفسير: يعنې هغه کفار چې د هغو لپاره تالا کېدل او هلاک او تباهي مقدّره شوې ده؛ نو هغوی له سره له خپل کفر او عصيان څخه لا س نه اخلي، او نه توبه وباسي، او نه د الله تعالی په طرف رجوع کوي، او نه کله هغوی بېرته دنيا ته په دې مقصود راوستل کېدی شي چې دلته د خپلو تېرو تقصيراتو تلافي وکړي؛ نو هغوی څرنګه د خپل خلاصون او نجات توقع کولی شي، د هغوی لپاره خو يواځې يو وخت باقي دی، کله چې هغوی دويم ځلي ژوندي او د پاک الله په طرف رجوع کوي، او پر خپلو تجاوزاتو او تقصيراتو معترف کيږي، او د ندامت او پښېماني اظهار کوي؛ مګر په هغه وخت کې به پښېماني هيڅ په کار ورنشي، دغه د قيامت وخت دی، چې د هغه له نژدې مباديو څخه يو د «يأجوج مأجوج» خروج دی، د عيسی عليه السلام له نزول څخه وروسته به د «ذوالقرنين» سد ماتوي، او د يأجوج مأجوج لښکر به لوی هجوم او يرغل (حمله) راوړي، دغه خلق به د خپل کثرت او ازدحام له کبله په ټولو لوړو (اوچتو) او ژورو (ښکته) داسې خواره شي، چې څوک هرې خوا ته ستر ګې اړوي؛ نو دوی به ويني، د دوی دغه بې مثاله سيلاب او هجوم به په داسې شدّت ګړندی را روان وي، چې هيڅ يو انساني قدرت به د دوی مخه نشي نيولی، او داسې به ښکاري چې د هرې يوې غونډۍ او هر يوه غره نه د دوی لښکرې راښوييږي او رارغړي، د «الکهف» د سورت په آخر کې مونږ د دې قوم په باب څه ليکلي دي؛ هلته دې وکتلی شي.

وَاقْتَرَبَ الْوَعْدُ الْحَقُّ فَاِذَا هِيَ شَاخِصَةٌ اَبْصَارُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ يٰوَيْلَنَا قَدْ كُنَّا فِيْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا بَلْ كُنَّا ظٰلِمِيْنَ ﴿۹۷﴾

او نژدې شوه وعده حقه (قيامت)، پس ناڅاپه قصه دا ده چې ټېغې (بوټې) به وتلې پاتې وي ستر ګې د هغو کسانو چې کافران شوي دي، (او وايي به) ای هلاکه ځمونږ (را حاضر شه دغه دې وخت دی !) په تحقيق وو مونږ په غفلت کې له دغې ورځې (له حقې وعدې په دنيا کې)، بلکه وو مونږ ظالمان (په خپل ځان په کفر سره).

تفسير: يعنې کله چې د جزاء او سزا وعده رانژدې شي، په دغه وخت کې به د منکرانو ستر ګې د هيبت او وېرې له شدّته رډې بلهې، ټېغې او بوټې ختلې وي، او په خپل جهل او غفلت به د افسوس او حسرت نه منګولې مروړي، او وايي به: افسوس چې مونږ له داسې لويې ورځې څخه ولې بې خبره او غافل پاتې شوي وو، چې په دغسې سختيو او مصيبتونو کې مبتلا او اخته شو، کاشکې مونږ په دنيا کې له دغه آفت څخه د نجات څه فکر کړی وی.

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ ۖ أَنْتُمْ لَهَا وَارِدُونَ ﴿۹۸﴾

بېشکه تاسې او هغه (بُتان، معبودان، شیطانان) چې عبادت یې کوئ تاسې بې له الله څخه خس (خاشاک) د دوزخ یئ، تاسې (له معبودانو خپلو سره) دې دوزخ ته ننوتونکې یئ.

تفسیر: یعنې تاسې ټول به له دغو خپلو باطلو معبودانو سره د دوزخ خس او خاشاک شئ ! لکه چې د البقرې سورت (۲۴) آیت، ۳ رکوع کې فرمایي: ﴿وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ او وروسته د دې آیت نه فرمایي: ﴿لَوْ كَانَ هَٰؤُلَاءِ آلِهَةً مَا وَرَدُوهَا﴾ که چېرې دغه بُتان او معبودان چې تاسو بې د الله تعالی څخه نیولي دي په رښتیا سره آلهه وای؛ نو جهنّم ته به نه ننوتی.

نو دا واضح او څرګنده شوه، چې د چا څخه چې دوی د خیر هیله او توقّع کوله، کله چې دوی خپل ځان نشي خلاصولی؛ نو د دوی حفاظت به څنګه وکړي.

تنبیه: له ﴿وَمَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ﴾ څخه مراد دلته اصنام او هغه معبودان مراد دي چې هغوی خلقو ته د شرک او بدعت دعوت ورکوي، او یا د عابدانو په عبادت باندې راضي او خوښ وي، یعنې که په دغو فرضي معبودانو کې د اور د دخول څخه کوم مانع نه وي؛ نو هغوی به هم له خپلو عابدانو سره یو ځای د دوزخ خس او خاشاک کیږي، باقي «عیسی المسیح، عزیر، او ملائکة الله علیهم السلام» چې دوی هم د ډېرو خلقو له پلوه معبودان درول شوي دي، نو د دغو ذواتو مقبولیت او وجاهت مانع دی چې «معاذ الله» په دغه عموم کې شامل کړی شي، له دې کبله یې تصریحًا وویل: ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ﴾.

لَوْ كَانَ هَٰؤُلَاءِ آلِهَةً مَا وَرَدُوهَا ۖ وَكُلٌّ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۹۹﴾

که چېرې وی دغه (بتان، معبودان په رښتیا سره) نو نه به وو داخل شوي په دې دوزخ کې او دا ټول (بتان او بت پرستان) به په دې دوزخ کې تل پراته وي.

تفسیر: یعنې دغه ټول عابدان او باطل معبودان به تل ترتله په دوزخ کې پراته وي.

لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَهُمْ فِيهَا لَا يَسْمَعُونَ ﴿۱۰۰﴾

وي به دغو (عابدانو) ته په دغه (دوزخ) کې چغې سورې، او دوی به په دې دوزخ کې نه اوري هیڅ (شی د دوزخ د شورماشور له سببه).

تفسیر: یعنې د هول او هیبت له شدّت او د عذاب له سخت تکلیف او د خپلو چغو او کریکو له شورماشور څخه به هیڅ شی نه اوري، له ابن مسعود رضي الله تعالی عنه څخه روایت دی، چې یو داسې وخت به راشي چې یو دوزخي به د اوسپنې په یوه صندوق کې بند کړی شي، او له پاسه به پرې مېخونه ټک وهل شي، او د دوزخ په اعماقو (ژورو) کې به واچولی شي، بنایي چې په دې وخت کې دغه هیڅ نه اوریدل د دغه دوزخي حال وي، د دې آیت د نزول په اثر مشرکان سخت خفه شول، نو اعتراض یې وکړ چې: آیا عُزیر او مسیح او ملائک چې ځینې یې معبودان دروي؛ هم په دوزخ لویږي؟ نو دغه مبارک آیت نازل شو:

إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَىٰ أُولَٰئِكَ عَنْهَا مُبْعَدُونَ ﴿۱۰۱﴾

بېشکه هغه کسان چې ړومبی شوې ده دوی ته له (جانبه د) مونږه نېکه مرتبه (سعادت، نجات)؛ دغه کسان به له دې دوزخ څخه لرې کړی شوي وي.

**تفسير:** يعنې يو ځل به د صراط له پل تيريږي، بيا به تل له دوزخ څخه لرې اوسيږي، او د تېرېدلو په وخت کې به هم د دوزخ له تکليف، الم او درد څخه بيخي خلاص وي.

لَا يَسْمَعُونَ حَسِيسَهَا ۖ وَهُمْ فِي مَا اشْتَهَتْ أَنْفُسُهُمْ خَالِدُونَ ﴿١٠٢﴾

نه به اوري دغه (جنتيان) غږ د (لمبو د) دوزخ، او دوی په هغو نعمتونو کې چې غواړي يې نفسونه د دوی؛ تل به وي.

**تفسير:** يعنې جنتيان به له دوزخ څخه دومره لرې وي، چې د دوزخ د اور ډېر يو نری غږ هم د دوی غوږو ته نه رسيږي، او په نهايت عيش او ارامۍ سره به په جنّت کې مزې کوي، او له هر راز نعمتونو څخه به دوی خوند اخلي.

لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْأَكْبَرُ وَتَتَلَقَّاهُمُ الْمَلَائِكَةُ هَٰذَا يَوْمُكُمُ الَّذِي كُنْتُمْ تُوعَدُونَ ﴿١٠٣﴾

نه به خفه (غمجن) کوي دوی (جنتيان) وېره ډېره لويه (هم لکه آخره نفخه، او يا د دوزخ خوا ته روانېدل)، او ملاقات به کوي له دوی سره پرښتې (استقبالاً، او وايي به) دا ورځ د (ثواب) ستاسې ده، هغه چې وئ تاسې چې وعده درسره کړی شوې وه (په دنيا کې).

**تفسير:** يعنې په هغه ورځ چې ټول مخلوق په سخته وېره او هيبت کې وي؛ الله تعالی به ټول جنتيان له غم او خفګان څخه محفوظ وساتي، يعنې له قبرونو څخه د نېکانو د راپاڅېدلو يا جنّت ته د ننوتلو په وخت کې به پرښتې د هغوی استقبال کوي، او ورته به وايي: د هغه دائمي مسرّت او راحت وعده چې له تاسې سره کړی شوې وه؛ نن د هغې د پوره کېدلو وخت راغلی دی.

يَوْمَ نَطْوِي السَّمَاءَ كَطَيِّ السِّجِلِّ لِلْكُتُبِ ۚ كَمَا بَدَأْنَا أَوَّلَ خَلْقٍ نُعِيدُهُ ۚ وَعْدًا عَلَيْنَا ۚ إِنَّا كُنَّا فَاعِلِينَ ﴿١٠٤﴾

(ياد کړه ای محمده!) هغه ورځ چې راونغاړو اسمان لکه نغښتل د سند، طومار لپاره د ليکل شويو کاغذونو، لکه چې ابتداء کړې وو مونږ اول پيدايښت؛ بيا اعاده کوو يې، وعده ده په مونږ، بېشکه مونږ يو کوونکي (د هغه موعود کار).

**تفسير:** ځينو مفسّرينو د دې آيت ترجمه داسې کړې ده: او ياده کړه هغه ورځ چې راونغاړو مونږ له بېخه دا اسمان لکه نغښتل د صحيفې لپاره د حفظ د هغو مکتوباتو چې په دې کې دي، لکه چې شروع کړې وه مونږ د اول پيدا کولو د دې عالم له عدم محض څخه چې ډېر آسان وو؛ اعاده به يې کړو بيا، او دا مړي به ټول ژوندي کړو، دا وعده کړې ده مونږ وعده لازمه په خپل ځان، نو بېشکه مونږ کوونکي يو د هغه کار چې وعده مو کړې ده، يعنې کله چې قيامت راشي؛ نو اسمانونه به داسې ونغاړل شي لکه چې د اسنادو او وثائقو ليکلي شوي کاغذونه سره نغښتلي کيږي.

وَلَقَدْ كَتَبْنَا فِي الزَّبُورِ مِنْ بَعْدِ الذِّكْرِ أَنَّ الْأَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصَّالِحُونَ ﴿١٠٥﴾

او خامخا په تحقيق ليکلي دي مونږ په زبور کې وروسته له نصيحت څخه دا خبره چې بېشکه دغه ځمکه مالکان کيږي به يې (بالآخر هغه) بندګان ځما چې نېکان دي (او په ميراث به يې وړي).

**تفسير:** يعنې له کاملو وفادارو بندګانو سره الله تعالی وعده کړې ده، چې د هغوی په برخه کې د دنيا او آخرت بری او کاميابي ده، او دوی د دې دنيا او د جنت د ځمکې وارثان ګرځول کيږي، لکه چې د «الأعراف سورت په (۱۵)

ركوع» کې يې ويلي دي: ﴿إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ﴾ او د «المؤمن سورت په (۶) ركوع» کې راغلي دي: ﴿إِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ يَقُومُ الْأَشْهَادُ﴾ او د «النور سورت په (۷) ركوع» کې يې ويلي دي: ﴿وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَىٰ لَهُمْ﴾ الآية.

دا داسې حتمي او قطعي وعده ده چې الله تعالى د هغې خبر په خپلو شرعيه او قدريه وو كتابونو کې وركړې ده (په لوح محفوظ) او (أم الكتاب) کې يې هم دغه وعده درج كړې ده، او د انبياوو عليهم السلام په ژبو يې پرله پسې مكرّرًا د هغه اعلان كړى دى، د داود عليه السلام په كتاب (زبور په ۳۷ او ۲۹) کې راغلي دي چې: «صادقان به د ځمكې وارثان وي»، لكه چې د دې محمدي امّت كامل وفادار او صادق بندګان تر يوې اوږدې مودې پورې د ځمكې وارثان وو، دغو صالحانو، صادقانو په شرق او غرب کې اسماني سلطنت جاري او قائم كړ، هر چېرې يې د عدل او انصاف بيرغونه ودرول، د حق دين غږ يې په ټوله دنيا کې پورته كړ، او د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دغه وړاندوينه (پېشګويي) د دوى په لاسونو پوره شوه: «إن الله تعالى زوى الأرض فرأيت مشارقها ومغاربها، وإن أمتي سيبلغ ملكها ما زوى لي منها».

إِنَّ فِي هَٰذَا لَبَلَاغًا لِقَوْمٍ عَابِدِينَ ﴿۱۰۶﴾

بېشكه په دې (تېر بيان کې) خامخا (سبب د) وصول د مطلب دى لپاره د قوم عبادت كوونكو.

تفسير: يعنې د دې قسم بشارتونو له اورېدلو څخه د يو الله جل جلاله عبادت كوونكي خپل مطلب ته رسيږي، يا دغه لوى قرآن چې پر داسې عظيمو بشارتونو او هدايتونو مشتمل دى، د عبادت كوونكو لپاره پوره ګټه او پوره كاميابي ده، يا په تحقيق سره په دې قرآن کې خامخا كفايت دى په دخول د جنت کې لپاره د هغه قوم چې عمل كوونكي دي په دې سره.

وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ ﴿۱۰۷﴾

او نه يې لېږلى مونږ ته (اى محمده !) مګر رحمت لپاره د (ټولو) عالميانو.

تفسير: يعنې ته خو د ټول جهان لپاره د رحمت په حيث مبعوث شوى يې، كه كوم بدبخت پخپله له دې عمومي رحمت څخه ګټه نه اخلي؛ نو دا خو د هغه خپل قصور دى، د لمر د رڼا او تودوخې فيض هر طرف ته رسيږي، خو كه كوم سړى پخپل ځان د رڼا ټول ورونه، كړكۍ او سوري بند كړي؛ نو دا به د ده خپله ناپوهي او لېونتوب وي.

قُلْ إِنَّمَا يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ فَهَلْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ ﴿۱۰۸﴾

ووايه (اى محمده ! كفّارو ته) بېشكه خبره همدا ده چې، وحې كولى شي ماته داسې: بېشكه همدا خبره ده چې معبود ستاسې معبود (الله تعالى) يو دى، آيا پس يئ تاسې اسلام راوړونكي؟ (الله ته غاړه اېښودونكي بلكه مسلمانان شئ !).

تفسير: دا د رسالت سره د توحيد بيان شو، يعنې له هغه لوى رحمت سره چې ته راغلى يې؛ د هغه لب لباب كامل توحيد دى، او دا داسې صاف او واضح مضمون دى چې د هغه په قبول کې انسان ته نه ښايي چې لږ شان هم وړاندې او وروسته شي، پس آيا تاسې دغه حكم منئ، او د حق په مقابل کې د غاړې اېښوولو لپاره تيار يئ؟ كه تيار يئ؛ فبها ونعمت، كه نه ما خپل تبليغ وكړ، خپله غاړه مې خلاصه كړه، تاسې پخپله خپل انجام او خاتمې ته فكر وكړئ !.

فَإِنۡ تَوَلَّوۡا فَقُلۡ اٰذَنۡتُكُمۡ عَلٰى سَوَآءٍؕ وَاِنۡ اَدۡرِىۡۤ اَقَرِيۡبٌ اَمۡ بَعِيۡدٌ مَّا تُوۡعَدُوۡنَ ۝١٠٩

پس كه وګرځېدل دوی (له ايمان څخه)؛ نو ووايه (ای محمده !) چې خبروم زه تاسې (په هغه شي چې زه پرې مامور يم) په برابرۍ سره، او نه پوهېږم زه چې آيا نژدې دی که لرې دی هغه څه چې تاسې سره يې وعده شوې ده (چې دنيوي عذاب يا اخروي عقاب دی).

تفسير: كه د حجّت د دومره اتمام نه وروسته هم تاسې حق نه منئ، او د توحيد په طرف نه راځئ؛ نو ما تاسې ته خبر درکړی دی، چې اوس زه له تاسې څخه بېزار يم، تاسې له مانه بېل او زه له تاسې څخه بېل يم، ستاسې عمل له تاسې سره مل، او څما عمل له ما سره مل دی، او هر يو به د خپل خپل عمل نتيجه وګوري.

څينو مفسّرينو د دې آيت داسې ترجمه کړې ده: پس ووايه دوی ته چې: خبر مې کړئ په دې، په داسې حال کې چې برابر يو سره زه او تاسې په دې پوهه کې، چې مې نه دی پټ کړی هيڅ شی له تاسې نه، يا غږ مې دربانديې وکړ د جنګ چې ورته تيار شئ !.

اِنَّهٗ يَعۡلَمُ الۡجَهۡرَ مِنَ الۡقَوۡلِ وَيَعۡلَمُ مَا تَكۡتُمُوۡنَ ۝١١٠

بېشكه چې دغه (الله) ته معلوم دي ښکاره له خبرو، او معلوم دي (الله ته) هغه چې پټوئ يې تاسې (له حسد کينې او نورو هم).

تفسير: يعنې يواځې الله تعالی په هره يوه پټه او ښکاره خبره پوهيږي، او په دې هم پوهيږي چې په کومه ګناه څه سزا او په کوم وخت کې ورکړی شي.

وَاِنۡ اَدۡرِىۡ لَعَلَّهٗ فِتۡنَةٌ لَّكُمۡ وَمَتَاعٌ اِلٰى حِيۡنٍ ۝١١١

او نه پوهېږم زه ښايي چې دغه تأخير د عذاب ازموينه وي تاسې لره، او نفع وي تر يوه وخته (د مرګه) پورې.

تفسير: يعنې د عذاب په تأخير کې امکان لري چې ستاسې امتحان او ازموينه وي، چې ګوندې په دې موده کې څه فکر او تأمل وکړئ، او له خپلو بدو کارونو او شرارتونو څخه لاس واخلئ، يا تش مهلت مقصد وي، چې تر يوې مودې پورې په دنيوي عيش او عشرت کې مشغول اوسئ، او د خپل شقاوت پيمانه مو ښه ډکه کړئ.

قٰلَ رَبِّ احۡكُمۡ بِالۡحَقِّ ؕ

وويل (رسول): ای ربه څما ! حکم وکړه په منځ څمونږ کې په حقه سره.

تفسير: يعنې لکه څنګه چې د هرې معاملې فيصله له انصاف سره سم ستا شان دی؛ نو له هغې سره سم څما او څما د قوم په منځ کې ژر تر ژره فيصله وکړه.

وَرَبُّنَا الرَّحۡمٰنُ الۡمُسۡتَعَانُ عَلٰى مَا تَصِفُوۡنَ ۝١١٢

او رب څمونږ ډېر مهربان دی، مرسته ترې غوښتل شوې ده په هغو خبرو چې بيانوئ يې تاسې (او وايئ چې ولې نه معذّب کيږو او نور؟).

تفسیر: یعنې یواځې له هغه ځنې مونږ خپله فیصله غواړو، او د کفّارو د خرافاتو په مقابل کې له ده څخه مرسته غواړو، او په همدې شان دعاګانې نورو انبیاوو علیهم السلام هم کولې، لکه چې د (۹ جزء د الأعراف سورت په (۸۹) آیت (۱۱) رکوع) کې راغلي دي: ﴿رَبَّنَا افْتَحْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ قَوْمِنَا بِالْحَقِّ وَأَنتَ خَيْرُ الْفَاتِحِينَ﴾ ځکه چې دوی په خپل حقّانیت او صداقت او د الله تعالی په عدل او انصاف باندې پوره باور او اعتماد درلود.

تمّت سورة الأنبياء ولله الحمد والمنّة.



# سُورَةُ الحَجِّ

«د (الحج) سورت مدني دی، پر ته له (۵۲ نه تر ۵۴) آیتونو پورې چې د مکې او مدینې په منځ کې نازل شوي دي، (۷۸) آیتونه او (۱۰) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۲) او په نزول کې (۱۰۳) سورت دی، د النّور له سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَيْءٌ عَظِيْمٌ ① يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ
مُرْضِعَةٍ عَمَّآ اَرْضَعَتْ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكٰرٰى وَمَا هُمْ
بِسُكٰرٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ ②

ای خلقو ! ځان وساتئ (وویرېږئ) تاسې له (عذابه د) رب خپل، بېشکه چې زلزله د قیامت (یو) شی دی ډېر لوی. په هغه ورځ چې وینئ تاسې هغه چې غافله به شي هره تی ورکوونکې (د دې ورځې له هیبت څخه) له هغه وړوکي چې تی ورکوي هغه ته، او وبه غورځوي هر مېرمن حامله (امیدواره) حمل (بچی) خپل، او وبه وینې خلق بې هوشه (له ډېر هیبت نه) حال دا چې نه به وي په واقع سره دوی بې هوشه، ولیکن عذاب د الله دی ډېر سخت (نو د قیامت د ورځې له وېرې نه به بې هوشه وي).

تفسیر: د قیامت عظیم الشأنې زلزلې دوه دي: یوه عین د قیامت د قیام په وخت کې یا له دویمې نفخې څخه وروسته، بله د قیامت د قیام څخه څه وړانـدې چې د مغرب له خوا د لمر له ختلو څخه پخوا واقع کیږي، او د قیامت له علاماتو څخه ده، که دلته ترې دویمه زلزله مراده وي؛ نو آیت به په خپله ظاهري معنی پاتې شي، او که اوله مراده شي؛ نو دواړه احتماله په کې شته:

لومړی دا چې حقیقتًا زلزله وشي، او تی ورکوونکې (لنګې) یا بلاربې ښځې په خپل هم هغه هیئت محشورې شي، یا به له زلزلې څخه د هغه ځای احوال او شدائد مراد وي، او ﴿يَوْمَ تَرَوْنَهَا تَذْهَلُ كُلُّ مُرْضِعَةٍ﴾ الآية ـ دې په تمثیل حمل کړی شي، یعنې دومره سختې، هیبت او وېره به وي، که شودې ورکوونکې (لنګې) ښځې موجودې وي؛ نو له ډېرې وېرې او هیبت نه به خپل تی رودونکي ماشومان هېر کړي، یا به د بلاربو ښځو بچیان ولوېږي، په دغه وخت کې به خلق دومره بې سده او مدهوشه وي؛ چې لیدونکي به ورباندې داسې ګمان کوي، چې د شرابو په نشو سره بې سده او مخمور دي، حال دا چې په هغه ځای کې به نشه چېرې وي، د الله تعالی د عذاب تصوّر او د اهوالو او شدائدو سختې به هوش، حواس او سد له مینځه یوسي.

تنبیه: که دغه وېره ټولو ته عامه وي؛ نو په ﴿لَا يَحْزُنُهُمُ الْفَزَعُ الْاَكْبَرُ﴾ (چې د نیکانو په هکله وایي: چې نه به غمجن کوي دوي لویه ویره دقیامت)، کې به نفي د اکثرو احوالو په اعتبار او دلته به اثبات د لږو ساعتونو په اعتبار واخیستل شي، او که دا آیت د اکثرو په حق کې وي، او ټولو ته شامل نه وي؛ نو بیا له سره هیڅ اشکال نشته.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ ③

او ځینې له خلقو څخه هغه دي چې جګړه کوي په (حق او خبرو د) الله کې بې له پوهې (له خپلې ناپوهۍ) او متابعت کوي د هر شیطان سرکښ.

**تفسير:** يعنې دا خلق په هغو خبرو کې چې الله تعالی يې خبر راکوي؛ ولې جګړې کوي؟ او کاره بحثونه په کې کوي؟ او خپله جهله او بې خبرئ عجيبې احمقانه شبهې خوروي، لکه چې په قيامت، بعث بعد الموت، جزاء، سزا او نورو د دوی لوی اعتراض دا دی: کله چې انسان ومري، او بيخي وروست شي، او هډوکي يې ذرې ذرې شي؛ نو عقل ته به څنګه پرېوځي چې دی به بيا ژوندی شي، او خپل هم هغه ړومبني اصلي حالت ته به بېرته وګرځي؟.

﴿وَّيَتَّبِعُ كُلَّ شَيْطٰنٍ مَّرِيْدٍ﴾ يعنې هر جنّي او انسي شيطان چې دی خپل ځان ته راوبولي؛ سمدلاسه هغه پسې روانيږي، ګواکې دی د ګمراه کېدلو داسې کامل استعداد لري، چې هر يو شيطان يې راوبولي؛ دی ورته لبيک وايي.

كُتِبَ عَلَيْهِ اَنَّهٗ مَنْ تَوَلَّاهُ فَاَنَّهٗ يُضِلُّهٗ وَيَهْدِيْهِ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ۝۴

ليکل شوي دي په (حق او قسمت د) دغه (شيطان په ازل کې) چې بېشکه شان دا دی چې: هر څوک چې دوستي او متابعت وکړي د شيطان؛ پس بېشکه (دا شيطان) ګمراه کوي دغه (تابع خپل)، او لاره ښيي ده ته (بيايي يې) عذاب د دوزخ ته.

**تفسير:** يعنې د «مريد» په متعلّق دا خبره غوټه او فيصله شوې ده، څوک چې د ده ملګرتيا او متابعت کوي؛ نو شيطان خپل دغه ملګری او تابع هم له خپل ځان سره ډوبوي، او داسې يې ګمراه کوي، چې بې له دوزخ له غورځولو يې نه پرېږدي.

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّنَ الْبَعْثِ فَاِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ
عَلَقَةٍ ثُمَّ مِنْ مُّضْغَةٍ مُّخَلَّقَةٍ وَّغَيْرِ مُخَلَّقَةٍ لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ ؕ وَنُقِرُّ فِي الْاَرْحَامِ مَا نَشَآءُ
اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْٓا اَشُدَّكُمْ ۚ وَمِنْكُمْ مَّنْ يُّتَوَفّٰى وَمِنْكُمْ مَّنْ
يُّرَدُّ اِلٰٓى اَرْذَلِ الْعُمُرِ لِكَيْلَا يَعْلَمَ مِنْۢ بَعْدِ عِلْمٍ شَيْـًٔا ؕ وَتَرَى الْاَرْضَ هَامِدَةً فَاِذَآ
اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ وَاَنْۢبَتَتْ مِنْ كُلِّ زَوْجٍۢ بَهِيْجٍ ۝۵

ای خلقو ! که يئ تاسې په شک کې له بعث څخه (چې خلق به بيا ژوندي پورته کيږي، اول خپل حال ته وګورئ !) پس بېشکه چې مونږ پيدا کړی دي مونږ (نبکه د) تاسې له خاورې، بيا (مو پيدا کړه اولاده د آدم) له يوه څاڅکي (مني) څخه، بيا له (يوې ټوټې) کلکې پرنډېويني، بيا له يوه پوټي غوښې تام الخلقة (چې پوره شکل يې پيدا کړی شوی وي)، او ناقص الخلقة (چې پوره شکل يې پيدا کړی شوی نه وي)، لپاره د دې چې بيان کړو مونږ تاسې ته (خپل کامل حکمت او قدرت)، او ثابت پرېږدو مونږ په ارحامو کې هغه شی چې اراده وکړو (د هغه د اثبات) تر نېټې معلومې پورې (چې د زېږېدلو وخت دی)، بيا راوباسو مونږ تاسې (له ګېډو د ميندو ستاسې، حال دا چې) طفل (وئ)، بيا (پالو تاسې) تر هغه پورې چې ورسيږئ تاسې کمال او قوّت خپل ته (جسمًا او عقلاً)، او ځينې له تاسې څخه هغه دي چې وفات کولی شي (له رشد او قوت څخه وروسته يا پخوا)، او ځينې له تاسې څخه هغه دي چې رد کولی شي (يعنې ژوندې وي) تر ناکاره عمره پورې، لپاره د دې چې نه پوهيږي وروسته له پوهې په هيڅ شي (د خپلو ټولو اقوالو د بېکاره کېدلو له کبله)، او وينې به ته ځمکه وچه شاړه، نو هر کله چې نازلې کړو مونږ په دغې (وچې مړې شاړې ځمکې داسمان له خوا) اوبه؛ نو وخوځيږي او ډېره شي او زرغونه کړي له هر قسم نباتاتو څخه ښايسته تاند، تنکی تبغ (د وښو په شنه کېدلو) سره.

تفسیر: یعني که کفّار او د بعث بعد الموت منکرین په دغه شك او شبهه کې لویدلي وي، چې له ذرې ذرې کېدلو څخه وروسته به بیا څرنګه ژوندي راپورته شي؟ نو خپل ړومبني پیدایښت ته دې غور او فکر وکړي، چې په ابتداء کې څرنګه پیدا شوی دی؟ یعني اول ستاسې پلار آدم علیه السلام مې له خاورې څخه پیدا کړ، بیا مو تاسې د مني له څاڅکي څخه پیدا کړئ ! یا دا مطلب چې له خاورې څخه مې خواړه پیدا کړل چې هغه څو منازل او مدارج تېروي، بیا نطفه کېږي، بیا هم د نطفې د څو منازلو او مدارجو له تېرولو څخه وروسته ستاسې تشکیل او تخلیق مینځ ته راځي، له نطفې څخه پرنډه وینه او له وینې څخه د غوښې ټوټه جوړېږي، او بیا د غوښې په دغې ټوټې باندې داسې وخت راځي، چې د بني آدمو پوره شکل، نقشه لاسونه، پښې، سترګې، پوزه او نور اندامونه جوړېږي، او یو وخت داسې وي، چې تر دغه وخته پورې هیڅ شی په کې نه وي جوړ شوي، یا یې دا مطلب چې د ځینو پیدایښت مکمل کېږي، او د ځینو هم هغسې ناقص پاتې کېږي، او په هم هغه ناقص صورت لوییږي، یا داسې دې وویل شي چې ځینې بې عیبه او ځینې عیبجن کېږي.

﴿لِّنُبَيِّنَ لَكُمْ﴾ دپاره ددی چې بیان کړو مونږ تاسې ته چې پخپله ستاسې اصل څه وو؟ او د څو ورځو د تېرېدلو څخه وروسته څرنګه په انساني صورت سره جوړ او مکمّل جوړ شوئ، که په دې وپوهېدئ؛ نو د نورو حقایقو انکشاف هم کېدی شي، او د بعث بعد الموت په امکان باندې هم پوهېدلی شئ.

﴿وَنُقِرُّ فِي الْأَرْحَامِ﴾ الآیة ـ او ثابت برېږدو مونږ په أرحامو کې هغه شې چې اراده وکړو دهغه د ثابت پاتې کېدو، یعني څومره موده چې د هرچا لپاره د مور په رحم کې اوسېدل او تقرّر لازم وي؛ هغومره یې هلته ساتو، لږ تر لږه (۶) میاشتې او زیات له زیاته دوه کاله یا څلور کاله علی اختلاف الأقوال.

﴿ثُمَّ نُخْرِجُكُمْ طِفْلًا﴾ الآیة ـ بیا راوباسو تاسې له ګېډو د میندو په داسې حال کې چې ماشوم وئ، یعني لکه څرنګه چې مو په ګېډه کې ډېر زیات مدارج طي کړي دي، همداسې د زېږېدلو څخه وروسته به هم په تدریج سره ډېر مدارج طی کوئ: یوه د طفولیت زمانه ده چې انسان په کې بالکل کمزوری او ناتوان وي، او د ده ټولې قواوې مخفي او پټې وي، بیا داسې یو وخت پرې راځي چې ټولې پټې قواوې یې ظاهرېږي، د جسماني حیثیته هر شی د خپلې ځوانی کمال ته رسیږي، بیا خو ځینې په ځلمیتوب کې مړ او ځینې خو هغه عمر ته رسیږي، چې په هغه کې انساني قواوې، حواس او اعضاء له زور او قوّت څخه لوېږي، او له پوهې او عقل او د کار کولو له قدرت څخه وروسته له کاره لوېږي، او بیخي بیکاره او خراب ګرځي، یاد شوي شیان یې له یاده وځي، او له زده کړو شیانو څخه هم په هیڅ شي نه پوهیږي او ترې هیرېږي (ګواکې بېرته وړوکتوب ته ګرځي).

ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّهُ يُحْيِ الْمَوْتٰى وَأَنَّهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٦﴾ وَأَنَّ السَّاعَةَ اٰتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَأَنَّ اللّٰهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُورِ ﴿٧﴾

دغه (راز راز پیدا کول او ژوندي کول) په سبب د دې دي چې بېشکه الله هم دی دی حق (ثابت موجود دائم په رښتیا مستحق د عبادت)، او بېشکه دی ژوندي کوي مړي، او بېشکه الله په هر شي ښه قادر دی. او بېشکه چې قیامت راتلونکی دی، چې نشته هیڅ شك په (راتلو) د دغه (قیامت) کې، او بېشکه چې الله بیا ژوندي راپاڅوي هر هغه چې په قبرونو کې دي (د حساب او جزاء لپاره).

تفسیر: د انسان له پیدایښت او د کښت (فصل) د مثالونو څخه چې پورته ذکر شول، څو خبرې ثابتیږي:

(۱): دا چې یقینًا او په تحقیق الله تعالی موجود دی، که نه داسې منظم، محکم او حکیمانه صنائع به له کومه څرګند شوي وی، او د چا له لاسه به دغسې چارې انجام شوي وی؟.

(۲): دا چې الله تعالی مړو او بې ساه شیانو ته ژوند ورکوي، او ساه په کې اچوي، لکه چې له یو موتي خاورې یا له یو څاڅکي اوبو څخه انسان جوړول او په مړه وچه ویجاړه ځمکه کې نباتي روح اچول په دې شاهد دي، چې پاک الله ته بیا پیدا کول هیڅ مشکل کار نه دی.

(۳): دا چې الله تعالی پر هر شي باندې قادر دی، او که هر شی د ده تر قدرت لاندې نه وی؛ نو له سره به یې داسې کارونه نشو کولی.

(۴): قیامت ضرور واقع کېدونکی دی، او له دې ژوند څخه وروسته خامخا بل ژوند راتلونکی دی، ځکه چې دومره لوی لوی انتظامونه هم داسې لغو، او بېکاره نشي پاتې کېدی.

د دې خبرې تقاضا دا ده چې کوم بل ژوندون دې خامخا موجود وي، چې هلته سعید او شقي، مجرم او وفادار او نور په صاف ډول سره بېل او جدا شي، او هر یو هم هغه مقام ته ورساوه شي؛ چې د هغه ځای د رسېدلو لپاره پیدا شوی، او د هغه قوّت او استعداد په خپل وجود کې لري.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ۝ ثَانِيَ عِطْفِهٖ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ لَهٗ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّنُذِيْقُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ عَذَابَ الْحَرِيْقِ ۝ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ يَدٰكَ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ۝

او ځینې له خلقو هغه څوک دي چې جګړه کوي په (حق یا قدر یا کلام د) الله کې بې له پوهې، او بې دلیله، او بې د لارې سمې، او بې له کتابه روښانه. په داسې حال کې چې اړوي څنګ خپل (له ایمانه په تکبر او اعراض سره او جګړې کوي) چې ګمراه کړي خلق له لارې د الله، شته ده لره په دنیا کې رسوایي او وبه څکوو مونږ ده لره په ورځ د قیامت کې عذاب سوځوونکی. (او وبه وایو ده ته) دا عذاب او رسوایي په سبب د هغو عملونو دي چې پخوا لیږلي دي دواړو لاسونو ستا (یعني تا)، او (بل په سبب د دې دي چې) بېشکه الله نه دی (هیڅ قدر) ظلم کوونکی پر بندګانو (خپلو چې بې ګناه څوک په عذاب کړي).

تفسیر: یعني د داسې واضحو دلائلو او شواهدو له اورېدلو څخه وروسته بیا هم کاره تلونکي، ضد کوونکي او معاند خلق د الله تعالی په خبرو کې همداسې چټي (بېکاره) او بې سنده جګړې کوي، حال دا چې له دوی سره نه کوم ضروري علم، نه عقلي دلیل او نه سمعي سند وي، بلکه تش په اوهامو او ګومانونو پسې روان وي، نو هر هغه څوک چې بې له حجّت او دلیله تش د عناد لامله د الله تعالی په خبرو کې جګړې کوي، او غرض یې دا وي چې نور خلق د ایمان او یقین له لارې څخه وګرځوي؛ نو الله تعالی به هغه په دنیا کې خوار او ذلیل کړي، او د آخرت عذاب او رسوایي خو بېله ورته تیاره ده.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّعْبُدُ اللّٰهَ عَلٰى حَرْفٍ ۚ فَاِنْ اَصَابَهٗ خَيْرُ ۨ اطْمَاَنَّ بِهٖ ۚ وَاِنْ اَصَابَتْهُ فِتْنَةُ ۨ انْقَلَبَ عَلٰى وَجْهِهٖ ۚ خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةَ ۭ ذٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِيْنُ ۝

او ځینې له خلقو هغه څوک دي چې عبادت کوي د الله په څنګ باندې (یا شک او شبهه چې په دین کې یې پیدا کوي، او حق یې نه ګڼي) پس که ورسیږي ده ته کوم خیر (په سبب د دین سره لکه صحت او غنی؛) نو قائم پاتې شي په دغه (عبادت او دین)، او که ورسیږي ورته کوم مصیبت؛ نو بېرته وګرځي په مخ خپل (کفر ته نو) زیانکار شو په دنیا کې (چې خپل مراد ته ونه رسېد)، او

(زيانكار شو په) آخرت كې، (چې عمل يې باطل او په اور كې داخل شو)، دغه (د دواړو جهانو زيان) همدغه زيان دی ښکاره.

يَدۡعُواْ مِن دُونِ ٱللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُۥ وَمَا لَا يَنفَعُهُۥۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلضَّلَٰلُ ٱلۡبَعِيدُ ﴿١٢﴾

رابلي دی (عبادت کوي مشرك) غير له الله د هغه څه چې نه ضرر رسولی شي ورته (كه يې عبادت ونه کړي)، او د هغه څه چې نه نفع رسولی شي ورته (كه يې عبادت وكړي)، دغه (عبادت د ما سوی الله) همدغه ګمراهي ده ډېره لويه لرې (له حقه له مقصده).

يَدۡعُواْ لَمَن ضَرُّهُۥٓ أَقۡرَبُ مِن نَّفۡعِهِۦۚ لَبِئۡسَ ٱلۡمَوۡلَىٰ وَلَبِئۡسَ ٱلۡعَشِيرُ ﴿١٣﴾

بولي دوی (عبادت کوي مشركان) د هغه (معبود) چې ضرر د هغه (عابد ته يې) ډېر نژدې دی له ګټې د هغه (معبود دغه عابد ته، چې د شفاعت هيله ده)، خامخا بد دوست دی (دا باطل معبود) او خامخا بد ملګری دی.

تفسير: يعنې كه د بُت پرستانو له زعم سره موافق له بُتانو څخه د ګټې هيله لرئ؛ دغه هيله بې فائدې او موهوم شی دی، ليكن د دوی له عبادت څخه نقصان او ضرر رسېدل قطعي او يقيني دي، نو ځكه د دوی د فائدې خبره به وروسته له دې نه ليدل كيږي، نقصان خو اوس سمدلاسه ورورسېد.

﴿لَبِئۡسَ ٱلۡمَوۡلَىٰ وَلَبِئۡسَ ٱلۡعَشِيرُ﴾ يعنې كله چې په قيامت كې د بُت پرستى نتائج ور د مخه شي؛ نو بت پرستان به همداسې وايي: ﴿لَبِئۡسَ ٱلۡمَوۡلَىٰ وَلَبِئۡسَ ٱلۡعَشِيرُ﴾.

إِنَّ ٱللَّهَ يُدۡخِلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ جَنَّٰتٖ تَجۡرِي مِن تَحۡتِهَا ٱلۡأَنۡهَٰرُۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفۡعَلُ مَا يُرِيدُ ﴿١٤﴾

بېشكه چې الله ننه باسي هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او كړي يې دي ښه (عملونه په داسې) جنتونو كې چې بهيږي له لاندې (د ونو او ماڼيو) د هغو وياله، بېشكه چې الله كوي هر هغه چې اراده يې وكړي (چې ځينې يې د مطيعانو كرامت او د عاصيانو اهانت دی).

تفسير: يعنې پاك الله د هر هغه چا په نسبت چې مشيت او اراده وكړي؛ سزا وركوي، او هر هغه ته چې اراده او مشيت يې وي؛ انعام وركوي، هيڅوك د دې خبرې توان نه لري چې د ده لاس ونيسي.

مَن كَانَ يَظُنُّ أَن لَّن يَنصُرَهُ ٱللَّهُ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِ فَلۡيَمۡدُدۡ بِسَبَبٍ إِلَى ٱلسَّمَآءِ ثُمَّ لۡيَقۡطَعۡ فَلۡيَنظُرۡ هَلۡ يُذۡهِبَنَّ كَيۡدُهُۥ مَا يَغِيظُ ﴿١٥﴾

هر څوك چې (داسې) وي چې ګومان كوي د دې چې له سره به مرسته (مدد) ونه كړي له دغه (محمد) سره الله په دنيا كې او په آخرت كې؛ نو ودې غځوي يو پړی اسمان ته (يا چت ته او ځان دې پرې ځوړند كړي)، بيا دې پرې كړي (دغه پړی چې ولويږي او مړ شي، يا دې ځان غرغره كړي) بيا دې وګوري چې آيا بيا زائلولی شي هيله، تدبير د هغه (سړي) هغه شي لره چې دی يې په قهر كړی دی (چې د الله له خوا د محمّد نصرت دی).

تفسیر: الله تعالی د خپل رسول سره د دنیوي او اخروي فتحې او نصرت کومې وعدې چې کړې دي؛ هغه خامخا پوره کېدونکې دي، که کافران او حاسدان ډېر په قهر او خفه شي، او د ربّاني نصرت د مخنیوي او انسداد لپاره ډېر تدابیر هم ونیسي؛ لیکن د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د نصرت او بري او کامیابی مخه په هیڅ ډول سره نشي نیولی، او هغه به خامخا ترسره کیږي، که دغه کفّار او حاسدین د محمد صلی الله علیه وسلم په دغه نصرت ډېر زیات خفه او غمجن دي، او په دې باندې پوهیږي چې مونږ په خپلو کوښښونو او زیار (محنت) ویستلو سره د الله تعالی د ارادې او مشیت لاره بندولی شو؛ نو دوی دې خپل کوښښ په دې لاره کې ولګوي، تر دې پورې چې د پړي یو سر دې د چت په لاړو کې ښه جګ وتړي، او بل سر دې د تېزندۍ په شان په خپله غاړه کې واچوي، او په خپل لاس دې خپل ځان غرغره کړي، او په دې صورت دې له ډېر قهر او خفګان څخه خپل ځان مړ او خلاص کړي، یا که یې له لاسه پوره وي؛ نو یو پړی دې له آسمان څخه ځوړند کړي، او په هغې دې اسمان ته وخیژي، او له هغه ځایه دې اسماني نصرت قطع کړي، نو بیا دې د راښکته کېدو نه وروسته وګوري چې په دغو تدبیرونو سره دغه ربّاني معاونت او اسماني نصرت منقطع کیږي؟ چې په هغه دوی دومره په قهر دي.

وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَٰهُ ءَايَٰتٍۭ بَيِّنَٰتٍ وَأَنَّ ٱللَّهَ يَهْدِى مَن يُرِيدُ ﴿١٦﴾

او په شان (د دغو منزّلو آیتونو) نازل کړي لیږلي دي مونږ آیتونه ښکاره، او بېشکه چې الله سمه صافه لاره ښیي هر هغه چا ته چې اراده وکړي (د هغه د هدایت).

إِنَّ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَٱلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلصَّٰبِـِٔينَ وَٱلنَّصَٰرَىٰ وَٱلْمَجُوسَ وَٱلَّذِينَ أَشْرَكُوٓا۟ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَىْءٍ شَهِيدٌ ﴿١٧﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او هغه کسان چې یهودیان دي، او (هغه کسان چې) صابیان دي، او (هغه کسان چې) نصرانیان دي، او (هغه کسان چې) مجوسیان دي، او هغه کسان چې شریک یې پیدا کړی دی له الله سره؛ بېشکه چې الله به فیصله وکړي په منځ د دوی کې په ورځ د قیامت کې، بېشکه چې الله په هر شي باندې ښه شاهد دی.

تفسیر: مجوس د اور عبادت کوي، او په دوه معبودانو عقیده لري، یو د خیر معبود چې دوی ورته (یزدان) وایي، دوهم د شر معبود چې هغه (اهرمن) بولي، او د کوم نبي نوم هم یادوي، دا معلومه نه ده چې دوی له هدایت څخه وروسته په ضلالت مبتلا شوي دي، یا له ابتداء څخه په غلطه لار روان دي.

د دغو ګردو مذاهبو او فرقو د منازعې عملي او قاطع فیصله به د الله تعالی له درباره د قیامت په ورځ کې کیږي، او هر یو به سره جدا کوي، او خپلو خپلو ټاکلو (مقرر شویو) ځایونو ته به یې رسوي، په دې باندې یواځې پاک الله عالم دی چې کوم یو د کوم مقام او د کومې سزا مستحق دی؟.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِى ٱلْأَرْضِ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ۗ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿١٨﴾

آیا نه وینې، نه پوهیږې ته؟ چې بېشکه الله چې دی سجدې بړدي (عبادت کوي) ده ته هر هغه چې په اسمانونو کې دي (له علویّاتو)، او هر هغه چې په ځمکه کې دي (له سفلیاتو)، او لمر او

سپوږمی او ستوري او غرونه او ونې او څلوربول او ډېر له خلقو (چې مؤمنان دي) په عبادت سره، او ډېر دي (له کفارو) چې ثابت شوی دی پرې عذاب (چې سجده نه ږدي الله ته)، او هر څوک چې سپک یې کړي الله؛ پس نشته ده ته هیڅوک عزت ورکوونکی، بېشکه چې الله کوي هر هغه کار چې اراده یې وکړي (له اکرام او اهانت څخه).

هٰذٰنِ خَصۡمٰنِ اخۡتَصَمُوۡا فِىۡ رَبِّهِمۡ ‌ۚ

دا دواړه (ډلې مؤمنان او کافران) مدّعیان دي چې جګړه یې وکړه په (ذات، صفات او دین د) رب خپل کې.

تفسیر: یعنې پخوا له دې نه چې په ﴿اِنَّ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَالَّذِيۡنَ هَادُوۡا وَالصّٰبِـِٕيۡنَ﴾ الآیة ـ کې چې د هغو ذکر وشو؛ هغو ته د حق او باطل له حیثه دوه ډلې ویلی شو: یوه د مؤمنانو ډله چې د خپل رب ټول اوامر مني، او د ده د احکامو په مقابل کې سر په سجده ږدي، دویمه د کفّارو ډله چې په هغو کې یهودان، نصرانیان، مجوسیان، مشرکین، صابئین او نور ټول شامل دي، چې د الله رباني هدایت نه قبلوي، او د الله د اطاعت لپاره سر په سجده نه ږدي، دغه دواړه ډلې په دغو مباحثو او مناظرو کې، د جهاد او قتال په مواقعو کې هم یو د بل په مقابل کې ټینګ ولاړ وي.

فَالَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا قُطِّعَتۡ لَهُمۡ ثِيَابٌ مِّنۡ نَّارٍ ؕ

پس هغه کسان چې کافران شوي دي؛ څکختې (جوړولی) شي دوی لپاره جامې له اوره.

تفسیر: یعنې لکه څنګه چې کالي (جامې) د انسان بدن پټوي؛ د جهنم اور به هم دغه راز دوی احاطه کوي، او ترې به چاپېریږي، یا به د کوم داسې شي کالي ورواغوستل شي، چې د اور ګرمي به پرې ډېر ژر اثر کوي، او ډېر زیات به سور کیږي.

يُصَبُّ مِنۡ فَوۡقِ رُءُوۡسِهِمُ الۡحَمِيۡمُ ‌ۚ‏ ﴿۱۹﴾ يُصۡهَرُ بِهٖ مَا فِىۡ بُطُوۡنِهِمۡ وَالۡجُلُوۡدُ ؕ‏ ﴿۲۰﴾ وَلَهُمۡ مَّقَامِعُ مِنۡ حَدِيۡدٍ‏ ﴿۲۱﴾

اچولی به شي (په شدّت سره) له پاسه د سرونو ددوی اوبه سرې یشېدلې. چې خوړین به شي په دغو اوبو سره هغه (کولمې) چې په ګېډو د دوی کې دي او پوستکې (د دوی هم). او وي به د دوی لپاره څټکونه (ګرزونه) له اوسپنې (چې د دوی سرونه به پرې ټکولی او وهلی شي).

تفسیر: یعنې د دوزخیانو ککرې به په څټکونو ګرزونو سره میده کیږي، او یشېدلې اوبه به له پاسه پرې اچولی کیږي، چې د ماغزو له لارې به د دوی ګېډې ته ورځي، او له هغه څخه به د دوی ټولې کولمې ټوټې ټوټې د دوی له مقعدو څخه لاندې تویږي، او د دوی د بدن خارجي سطح به هم د دې اوبو له رسېدلو څخه بیخي شړیږي، او د ورستې وینې غوښې په شان به ترې لوېږي، بیا به خپل اصلي حالت ته بېرته ورګرځي، او پرله پسې به همدغه عمل تکراریږي: ﴿كُلَّمَا نَضِجَتۡ جُلُوۡدُهُمۡ بَدَّلۡنٰهُمۡ جُلُوۡدًا غَيۡرَهَا لِيَذُوۡقُوا الۡعَذَابَ﴾ (۵ جزء د النساء سورت (۵۶) آیت (۸) رکوع)، اللهم أعذنا من غضبک وعذابک !.

كُلَّمَاۤ اَرَادُوۡۤا اَنۡ يَّخۡرُجُوۡا مِنۡهَا مِنۡ غَمٍّ اُعِيۡدُوۡا فِيۡهَا وَذُوۡقُوۡا عَذَابَ الۡحَرِيۡقِ‏ ﴿۲۲﴾

هر کله چې اراده وکړي (دوزخیان) د دې چې ووځي له دغه (دوزخ څخه) له غمه؛ نو بېرته ګرځولی شي دوی په دغه (اور) کې او (وبه ویلی شي دوی ته) وڅکئ تاسې عذاب (د اور ډېر) سوځوونکی.

تفسیر: یعنې کله چې کافران په دوزخ کې ډېر غم او تکلیف ووینې؛ نو وبه غواړي چې له دې ځای نه ووځي او چېرې وتښتي، خو د اور لمبې به دوی له ځان سره پورته کړي، بیا به یې پرښتې د اوسپنو په ګرزونو سره وهي، او لاندې به یې غورځوي، او داسې به ورته ویل کیږي: «د اور د دغه دائمي عذاب خوند وڅکئ !»، چې له سره به ترې بېرته نشئ وتلی «العیاذ بالله».

إِنَّ اللَّهَ يُدْخِلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا

بېشکه چې الله ننه باسي هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه په داسې) جنتونو کې چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو ویالې، ګاڼه به واچول شي (جنتیانو ته) په دغه (جنت) کې له باهوګانو (وښیو) له سرو زرو او له مرغلرو ځنې.

تفسیر: یعنې په لویه هوسایی (آرام)، ښایست، او زیب سره به اوسیږي، او له هر یو عنوان څخه یې تجمّل تنعم څرګندیږي.

وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ ﴿٢٣﴾

او جامې د دغو (جنتیانو) به په دغه (جنت) کې ورېښمینې وي.

تنبیه: په احادیثو کې راغلي دي: «هر هغه نارینه چې دلته د ورېښمو کالي واغوندي؛ نو په آخرت کې به یې نه آغوندي»، که دغه آغوستونکی کافر وي؛ نو ښکاره ده چې هغه له سره په جنّت کې نه داخلیږي چې د جنتیانو لباس واغوندي، هو ! که مؤمن وي؛ امکان لري چې د څه مودې له مخې د دغه لباس څخه محروم شي، او بیا یې تر ابده پورې واغوندې، نو د دغه غیر متناهي مودې په مقابل کې دغه لږه زمانه غیر معتدّ به ګڼله کیږي.

وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الْقَوْلِ

او لاره ښوولې شوې ده (جنتیانو ته په دنیا کې له جانبه د الله) طیبې پاکې ته (چې لا إله إلا الله ده) له قول نه.

تفسیر: هر هغه مؤمن چې په دنیا کې (لا إله إلا الله) ویلې وي، قرآن یې لوستلی وي، د الله تعالی تسبیح او تحمید، امر بالمعروف، نهي عن المنکر یې کړی وي؛ نو په آخرت کې به هم پرښتې له هرې خوا دوی ته سلامونه اچوي، او پخپله جنتیان به هم په خپلو منځونو کې یو بل ته ښې پاکې خبرې کوي، هلته به بېځایه خبرې، شورماشور، دعوی او دنګلي نه وي، او ټول به د الله تعالی د نعمتونو په شکر ګزارۍ کې لګیا او مشغول وي، مثلا وایي به: ﴿وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ﴾ (۲۴ جزء، د الزمر سورت (۷۴) آیت)، د (۲۲ جزء د فاطر سورت په (۳۳ - ۳۴) آیتونو) کې راغلي دي: ﴿يُحَلَّوْنَ فِيهَا مِنْ أَسَاوِرَ مِنْ ذَهَبٍ وَلُؤْلُؤًا وَلِبَاسُهُمْ فِيهَا حَرِيرٌ * وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ﴾ الآیة - په همدغه سره د دې حاضر آیت تفسیر کیږي، لکه چې په روح الهاني تفسیر کې راغلې دي، نبّه علیه في روح المعاني.

وَهُدُوا إِلَى صِرَاطِ الْحَمِيدِ ﴿٢٤﴾

او لار ښوولې شوې ده (جنتیانو ته په دنیا کې) طرف د لارې (د الله) ته چې ستایل شوې دی په ښو ښو صفتونو سره.

تفسیر: یعني د الله تعالی لاره یې وموندله چې نوم یې اسلام دی، دغه لاره په خپله هم حمیده ده، او د لارې خاوند هم حمید دی، یا یې هغه ځای ته لاره وموندله؛ چې هغه ته په رسېدلو سره انسان د الله تعالی د نعمتونو شکر اداء کوي.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَيَصُدُّونَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ الَّذِي جَعَلْنَاهُ لِلنَّاسِ سَوَاءً الْعَاكِفُ فِيهِ وَالْبَادِ

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، او اړوي (منع کوي خلق) له لارې د الله (اسلام نه) او له مسجد حرام نه؛ (نو معذبیږي په عقبی کې)، هغه (مسجد) چې ګرځولی دی مونږ دغه مسجد ځای د عبادت لپاره د (ټولو) خلقو، برابر دي اوسیدونکي په دغه (مسجد) کې او له بهره راتلونکي.

تفسیر: یعني یو خو هغه خلق دي چې له خپلې ګمراهۍ سره سره دنورو مخه هم نیسي، چې د هدایت په لاره لاړ نشي، او غواړي چې هیڅوک د الله تعالی په لاره سم نشي، تر دې هغه مسلمانان چې د خپل پیغمبر سره د عمرې د اداء کولو لپاره مکې معظّمې ته روان وو؛ د هغوی مخه یې هم ونیوله، حال دا چې مسجد الحرام یا د حرم شریف هغه برخه چې په هغې پورې د خلقو عبادت او مناسک تعلّق لري؛ ټولو ته یو شان دی، او هلته مقیم اومسافر او محلي او پردیسي ته د اوسېدلو او عبادت کولو مساوي حقوق حاصل دي، هو ! که څوک د هغو متبرکو ځایونو څخه د شړلو وړ او لایق وي؛ نو هم هغه کسان دي چې په خپل شرک او شرارت د دې مبارک ځای بې احترامي او بې عزتي کوي.

وَمَن يُرِدْ فِيهِ بِإِلْحَادٍ بِظُلْمٍ نُّذِقْهُ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٥﴾

او هر چا چې اراده وکړه په دغه (مسجد الحرام) کې د بې لارۍ (د حق نه په مخ ګرځولو سره)؛ نو وبه څکوو مونږ په هغه (کرېدونکي) له عذاب دردناک څخه.

تفسیر: یعني هغه څوک چې په مسجد الحرام کې عمدًا او بالاراده د بې دینۍ او شرارت کومه خبره کوي؛ نو هغه ته به د هغه چا په نسبت چې دغه کار په بل ځای کې کوي سخته سزا ورکړی شي، نو له دې نه د هغو خلقو حال معلوم کړئ چې په خپل ظلم او شرارت سره یې د مؤمنانو مخه د مکې معظمې د زیارت د ورتګ په وخت کې نیولې وه.

وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ

او (یاد کړه ای محمده !) هغه وخت چې ښکاره (معین) کړ مونږ ابراهیم ته ځای د بیت الله.

تفسیر: وایي چې د کعبې شریفې ځای لا له پخوا څخه مقدّس او متبرّک وو، بیا د ډېرې مودې په تېرېدلو سره ورک او نامعلوم شو، ابراهیم علیه السلام ته حکم وشو چې بیت الله ودانه کړه ! او د هغه معظم مقام نښې ورونښودل شوې، ابراهیم علیه السلام د خپل ځوی اسماعیل علیه السلام په ملګرتیا د کعبې خونه (کور) ودانه کړه.

أَن لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئًا

(او ورته مو وویل) چې مه شریکوه له ما سره هیڅ.

تفسیر: یعني د دې کور بنسټ او تاداو (بنیاد) په خالص توحید باندې کېږده ! هیڅوک دې چې دغه ځای ته راشي؛ د الله تعالی د عبادت څخه پرته مشرکانه رسوم په ځای نه راوړي، د مکې معظمې کفّارو سره له دې چې د ابراهیمي ملت

مدّعيان وو، ددغه آيت خلاف عمل وكړ چې هلته يې درې سوه شپېته بتان ودرول (العياذ بالله)، څمونږ سيد المرسلين خاتم الأنبياء محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم دغه مطهّر او مقدّس ځاى له دغه نجاست او ګندګۍ څخه د تل لپاره پاك كړ، فلله الحمد والمنة.

وَّطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِيْنَ وَالْقَآئِمِيْنَ وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ ﴿۲۶﴾

او پاك ساته كور زما (له بُتانو او نورو پليتو څخه) لپاره د طواف كوونكو، او لپاره د قيام كوونكو (په مكه كې)، او ركوع كوونكو، او سجده كوونكو (لمونځ كوونكو لپاره).

**تفسير:** يعنې يواځې د همدغو خلقو لپاره دې مخصوص وي، او له نورو ټولو څخه دې پاك او صاف كړ شي.

وَاَذِّنْ فِى النَّاسِ بِالْحَجِّ يَاْتُوْكَ رِجَالًا وَّعَلٰى كُلِّ ضَامِرٍ يَّاْتِيْنَ مِنْ كُلِّ فَجٍّ عَمِيْقٍ ﴿۲۷﴾

او غږ وكړه (اى ابراهيمه) په خلقو كې د حج (د اداء كولو) لپاره، چې راشي (حاجيان) تاته پلي (پياده) او (سواره) په هر ډنګر اوښ چې راځي (دا اوښان) له هرې لارې لرې (ژورې لرې) نه.

**تفسير:** كله چې كعبه ودانه شوه، نو ابراهيم عليه السلام په يوه جګګ (اوچت) غره باندې ودرېد، او داسې غږ يې وكړ: «اى خلقو ! پاك الله په تاسې حج فرض كړى دى، حج ته راشئ !»، حق تعالى دغه غږ په هر ځاى كې هر روح ته ورساوه، نو د هر چا لپاره چې حج مقدّر وو؛ د هغه روح دغه غږ ته لبّيك وويل، او هم هغه د شوق پټې سكروټې دي، چې په زرهاوو پلي (پياده) هم د حج د سفر ربړونه (تكليفونه) په ځان اخلي، او د بيت الله په ليدلو سره خپلې سترګې رڼوي، او ډېر زيات خلق خو له دومره لرې ځايونو څخه سواره دمكې معظمې په لورې سفر كوي؛ چې له ډېرو مزلونو او سفر كولو څخه د دوى اوښان سترې ستومانه او بيخي خوار او ډنګر كېږي، زياترو حاجيانو ته غښتلي او ځاربه اوښان كله وررسيږي، نو څكه په همدغو خوارو، ډنګرو، وچو، كلكو اوښانو مزلونه كوي، دا ګواكې د هم هغې دعاء د مقبوليت اثر دى، چې ابراهيم عليه السلام كړې وه: ﴿فَاجْعَلْ اَفْـِٕدَةً مِّنَ النَّاسِ تَهْوِيْٓ اِلَيْهِمْ﴾ (۱۳ جزء د ابراهيم سورت (۳۷) آيت (۶) ركوع).

لِّيَشْهَدُوْا مَنَافِعَ لَهُمْ وَيَذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ فِيْٓ اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ عَلٰى مَا رَزَقَهُمْ مِّنْۢ بَهِيْمَةِ الْاَنْعَامِ ۚ

لپاره د دې چې حاضر شي (دغه خلق ځاى د دنيوي او اخروي) ګټو خپلو ته، او چې ياد كړي نوم د الله په هغو څو ورځو (د لوى اختر) كې چې معلومې دي په (ذبح د) هر هغه حيوان چې وركړى دى الله دوى ته له بې ژبو چارپايانو څخه.

**تفسير:** د بيت الله د حج اصلي مقصد خو اخروي ګټو حاصلول دي، مثلاً د حج او عمرې او د نورو عباداتو په ذريعه د الله تعالى خوښي حاصلول او د روحاني ترقياتو لوړو (اوچتو) مقاتو ته رسېدل، ليكن د دغې لويې اجتماع په ضمن كې ډېر زيات سياسي، تمدّني او اقتصادي ګټې هم حاصلېدى شي، كما لا يخفى.

د ﴿اَيَّامٍ مَّعْلُوْمٰتٍ﴾ څخه د ذوالحجې دړومبنى لس (۱۰) ورځې مراد دي، په دغو ورځو كې د الله تعالى د يادونې فضيلت ډېر زيات ښوولى شوى دى، د دغه ذكر لاندې په خصوصي ډول دا هم داخل دي، چې د قربانۍ د حيواناتو د ذبح كولو په وخت كې دې د الله تعالى نوم واخيست شي، او «بسم الله، الله أكبر» دې وويل شي، په دغو ورځو كې ډېر ښه عمل همدا دى چې د پاك الله په نامه دې ذبح وكړى شي.

فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْبَآئِسَ الْفَقِيرَ ﴿٢٨﴾

پس خورئ تاسې له هغې (غوښې) څخه، او خوراک ورکوئ بد حال فقير (محتاج) ته.

تفسير: ځينو کفّارو داسې خيال کاوه چې په خپله قرباني کوونکي ته نه ښايي چې د قربانۍ له غوښې څخه څه وخوري، دا دی په دې آيت کې د دې مفکورې اصلاح او حکم کوي، چې له دغې غوښې څخه هم تاسې په شوق سره وخورئ، هم يې په خپلو دوستانو، خپلوانو، خوارانو او غريبانو وخورئ !.

ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ وَلْيَطَّوَّفُوا بِالْبَيْتِ الْعَتِيقِ ﴿٢٩﴾

بيا دې لرې کړي (حاجيان حاجتونه او) خيري خپل، او پوره دې اداء کړي نذرونه خپل (او د حج واجبات)، او طواف دې وکړي په هغه کور چې قديم کريم دی.

تفسير: له کوم ځايه چې لبّيک ويل شروع کيږي (احرام تړل کيږي)؛ نو محرِم نه وينه وباسي، نه خپل ويښتان او نوکان اخلي، نه خپل ويښتان غوړوي، نه د بدن د خيرو، دوړو او ګردونو په لرې کولو دومره زيات اهتمام کوي، او نه په ډېره مبالغه او منبلو لامبي، کله چې د ذوالحجة الحرام لسمه ورځ راشي؛ دغه ګرد قيدونه لرې کيږي، سرونه خريل يا ويښتان اخيستل کيږي، ښه غسل کوي، ګنډلې او صفا کالي (جامې) اغوندي، او د کعبې د زيارت طواف ته ځي، په چا چې ذبح لازمه وي؛ رومبی ذبح کوي، او د «نذرونو» د ورکولو څخه مطلب دا دی چې هغه نذرونه چې د خپلو مطالبو لپاره يې پر خپل ځان منلي وي؛ هغه دې اداء کړي، اصلا دغه نذر د الله تعالى نذر دی او د بل هيچا نه دی، د ځينو په نزد د «نذرونو» د لفظ څخه د حج مناسک يا د حج واجبات مراد دي، او همدغه ډېر نژدې راښکاري، والله أعلم.

ذَٰلِكَ وَمَن يُعَظِّمْ حُرُمَاتِ اللَّهِ فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُ عِندَ رَبِّهِ ۗ وَأُحِلَّتْ لَكُمُ الْأَنْعَامُ إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ ۖ فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ ﴿٣٠﴾

دا حکم مو واورېد (يا امر همدا دی چې تېر شو). او هر چا چې تعظيم وکړ د احکامو د الله؛ پس دا کار غوره دی ده ته په نزد د رب د ده، او حلال کړی شوی دی تاسې ته (خوراک د غوښې د) څارويو (پس له ذبحې) مګر (حرام دي) هغه څاروي چې لوستل کيږي په تاسې (حراموالی يې)، پس ځان ساتئ تاسې له پليتۍ څخه چې بُتان دي، اوځان ساتئ تاسې له وينا د دروغو څخه.

تفسير: لکه چې له ترجمې څخه ښکاري: «ذلک» دمحذوفې مبتدأ خبر دی، يعنې حرام شيان درانه ګڼل او د هغو پرهېښودل، يا هغه شيان چې د الله تعالى له طرفه محترم ښودل شوي دي، د هغوی د احترام او ادب او تعظيم قائم ساتل لويه نيکي او د ښېګڼې (فائدې) خبره ده، او د هغو انجام به ډېر ښه وي.

په محترمو شيانو کې د قربانۍ حيوان ـ بيت الله ـ صفا ـ مروه ـ منى ـ عرفات ـ مسجدين ـ قرآن بلکه د الله تعالى ټول احکام راځي، په خصوصي ډول سره دلته د مسجد الحرام او د هديې د حيوان په تعظيم زور اچول شوی دی، چې د الله تعالى د بندګانو په راتګ کې هلته په حرم کې څه مشکلات پيدا نه کړئ ! او نه د ممانعت عوامل منځ ته راوړئ ! او نه هغه د هديې حيوانات بېرته تللو ته مجبور کړئ، بلکه قيمتي، ښه څاربه څاروي قرباني کړئ !.

﴿إِلَّا مَا يُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ يعنې هغه حيوانات چې د هغو حراموالی وخت په وخت تاسې ته ويل کيږي، لکه چې په «البقرة»، «المائدة»، «الأنعام» کې مفصّلاً تېر شول، نو هغه حلال نه دي.

﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّوْرِ﴾ يعني ځاروی د الله تعالی مخلوق او مملوك دی، يوائې د الله تعالی په حکم او د هغه په نامه حلال کېدی شي، او د الله تعالی د کعبې نذر کېدی شي، هغه ساکبنن (ذي روح) چې د کوم بُت په قربانګاه کې ذبح کيږي؛ هغه مرداريږي، د داسې شرك او پليتو کارونو څخه ځان ساتنه او اجتناب ضروري دی.

﴿وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّوْرِ﴾ يعني د دروغو ويل، او د دروغو شاهدي ورکول، د بل په نامه د الله تعالی د پيدا کړو حيواناتو حلالول، بې د شرعي حکم څخه يو شي ته حلال او يا حرام ويل ټول په «قول الزور» کې داخل دي، د «قول الزّور» د بدی اندازه له دې نه اټکل کېدی شي، چې دلته الله تعالی د هغه ذکر له شرك سره کړی دی، او د الأعراف سورت په (۳۳آيت، (۴) رکوع، ۸ جزء) کې يې داسې ارشاد کړی دی: ﴿وَأَنْ تُشْرِكُوا بِاللهِ مَالَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطٰنًا وَأَنْ تَقُوْلُوا عَلَى اللهِ مَالَا تَعْلَمُوْنَ﴾ په احاديثو کې رسول الله صلی الله عليه وسلم هم په ډېر تأکيد او تشديد سره له دې نه ممانعت کړی دی.

حُنَفَآءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِيْنَ بِهٖ ؕ

په داسې حال کې چې غاړه اېښودونکي يئ په اخلاص سره خاص الله ته، نه يئ مشرکان په ده باندې.

تفسير: يعني له هر طرف او هر چا څخه مخ وګرځوئ، او يوائې د هم هغه واحد لا شريك الله تعالی خالص بندګان اوسئ! ښايي ستاسې ټول افعال او نيتونه په کلّي ډول بې د بل د شرك نه خاص الله تعالی ته وي، او د الله تعالی په الوهيت او عبادت کې بل هيڅوك مه شريکوئ.

وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَكَاَنَّمَا خَرَّ مِنَ السَّمَآءِ فَتَخْطَفُهُ الطَّيْرُ اَوْ تَهْوِيْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ مَكَانٍ سَحِيْقٍ ﴿۳۱﴾

او هر چا چې شريك ونيو له الله سره؛ پس لکه چې راوغورځېد له اسمان څخه پس وتښتوي دی په چابکۍ سره مرغان (او پوټې پوټې کوي يې)، يا وغورځوي دی باد (له کوم هسك «اوچت» ځای نه) په لرې ژور (ښکته) ځای کې.

تفسير: دا يې د شرك مثال بيان کړ، خلاصه يې دا ده چې د توحيد مقام نهايت اعلی دی، کله چې انسان توحيد پرېږدي، او د کوم بل مخلوق په مقابل کې خپل سر ښکته کړي، نو دی په خپله خپل ځان ذليل او سپك کوي، او د توحيد له لوړ (اوچت) اسمان څخه د شرك او کفر کندې ته لويږي.

ښکاره ده چې له دومره جګ ځای څخه دومره ژور ځای ته له لوېدلو څخه وروسته ژوندی نشي پاتې کېدی، اوس خو به يا د اهواوو او ناکارو افکارو مردار خواره ځناوران له خلورو خواوو د ده د غوښې پوټې په خپلو منبوکو او پنجو سره دانګې دانګې او پوټې پوټې کړي، او وبه يې خوري، يا به لعين شيطان د يوې تېزې ګړندی هوا په پربوکې کې دی له خپله ځان سره پورته کړي، او په کومه ډېره زياته لرې ژوره کنده کې به يې وغورځوي، چې هيڅوك به د ده هيڅ يو هډوکی او پښتی ونه ويني.

ذٰلِكَ وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَآئِرَ اللّٰهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ ﴿۳۲﴾

دا حکم مو واورېد (يا امر همدا دی چې تېر شو) او هر چا چې تعظيم وکړ د علائمو د (دين د) الله (چې د حج افعال، د هداياوو څربول او نور عبادت دي)؛ پس بېشکه دا (تعظيم) د زړونو له تقوی څخه دي.

تفسیر: یعنې د شعائر الله تعظیم په شرک کې داخل نه دی، د هر چا په زړه کې چې د پرهېزګارۍ مضمون او د یو الله جل جلاله خوف وي؛ نو دی به خامخا د شعائر الله ادب او تعظیم کوي، دغه ادب او تعظیم شرک نه دی، بلکه د الله تعالی د عین توحید له آثارو څخه دی، ځکه چې د الله تعالی رښتینی بنده د هر هغه شي چې الله جل جلاله ته منسوب وي؛ قدر او ادب کوي.

لَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى ثُمَّ مَحِلُّهَآ إِلَى ٱلْبَيْتِ ٱلْعَتِيقِ ﴿٣٣﴾

شته تاسې ته په دغو څلورو بولو (د هدیو) کې فائدې تر وخت معلوم پورې (چې د دوی د حلالولو وخت دی)، بیا (رسونه ده) ځای (د حلالولو) د دوی ته تر بیت الله پورې، (یا) بیا وخت د دغو منتهي دی هغه بیت ته چې بلند شان دی.

تفسیر: قدیم کور بیت الله شریف دی، او دلته ښایي توسُّعًا ترې ټول حرم مراد وي، یعنې د اوښانو، غویو، پسونو (ګډانو) او نورو نه تاسې ډېرې ګټې حاصلولی شئ، مثلاً پرې سورېږئ، شودې یې څښئ، او نسل ترې اخلئ، او لا یې پسې زیاتوئ، له وړیو، پوستکو او نورو څخه یې ګټه (فائده) اخلئ، اوس د هغو عظیم الشأنه اخروي فائده همدغه ده، چې کعبې ته یې نژدې راولئ، او د الله تعالی په نامه یې قرباني کړئ.

وَلِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا لِّيَذْكُرُوا۟ ٱسْمَ ٱللَّهِ عَلَىٰ مَا رَزَقَهُم مِّنۢ بَهِيمَةِ ٱلْأَنْعَٰمِ ۗ فَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَٰحِدٌ فَلَهُۥٓ أَسْلِمُوا۟ ۗ

او هر امت لپاره مونږ مقرره کړې ده قرباني د دې لپاره چې یاد کړي دوی نوم د الله پر هر هغه شي چې رزق، روزي ګرځولې ده (الله) دوی ته له بې ژبو څلور بولو حیواناتو څخه (په وخت د ذبحې د دوی کې)، پس حق معبود ستاسې (او د پخوانیو امتونو) الله حق معبود یو دی، پس خاص همده ته غاړه کېږدئ!.

تفسیر: یعنې الله تعالی ته د نذر په ډول د حیواناتو حلالول په هر اسماني دین کې عبادت منل شوی دی، که دا عبادت تاسې غیر الله ته د عبادت (نذر) په ډول کوئ؛ نو دغه شرک دی، او ښایي ترې سخت پرهېز وکړی شي، د موحّد کار دا دی چې یواځې د پاک الله په نامه قرباني وکړي، چې د هغه په پاکه نامه ټولو شرائعو د قرباني کولو حکم ورکړی دی، او نه ښایي چې قرباني د ده له حکم څخه خارجه وي.

وَبَشِّرِ ٱلْمُخْبِتِينَ ﴿٣٤﴾

او زېری ورکړه عاجزي کوونکو ته.

تفسیر: یعنې هغو خلقو ته د الله تعالی د رضاء او خوښۍ زېری واوروه، چې یواځې د هغه واحد لا شریک الله جلّ جلالُه حکم مني، او د هغه په مقابل کې غاړه ږدي، او په هم هغه باندې یې زړونه ډاډه کېږي، او د ده له جلال او جبروت څخه تل وېرېږي.

ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَٱلصَّٰبِرِينَ عَلَىٰ مَآ أَصَابَهُمْ وَٱلْمُقِيمِى ٱلصَّلَوٰةِ وَمِمَّا رَزَقْنَٰهُمْ يُنفِقُونَ ﴿٣٥﴾

هغه (عاجزي کوونکي) کله چې یاد کړ شي (د دوی په مخکې نوم د) الله؛ نو وېرېږي زړونه د دوی، او (زېری ورکړه) صبر کوونکو ته په هغو (سختیو او غمونو) چې رسیدلي دي دوی ته، او (زېری

ورکړه) قائموونکو (سم درروونکي سره له ټولو حقوقو) د لمانځه ته، (او زېرى ورکړه هغو کسانو ته چې) ځينې له هغو شيانو نه چې ورکړي دي مونږ دوى ته لګوي يې (په ښو کارونو کې).

تفسير: يعني مصيبتونه او تکليفونه په پوره صبر او ثبات سره په ځان برداشت کوي، او متحمّل کيږي يې، او د کړاوونو او سختيو د تحمّل په وخت کې د حقې لارې څخه يې قدم نه ښوييږي.

﴿وَالْمُقِيمِي الصَّلٰوةِ﴾ الآية - د بيت الله تر رسېدو پورې حاجيان له ډېرو مصيبتونو او کړاوونو سره مخامخ کيږي، په سفر کې زياتره د لمونځونو د فوتېدلو يا د قضا کېدلو انديښنه وي، مال هم په کافي اندازه سره لګيږي، ښايي په همدغه مناسبت يې د دغو اوصافو او خصائلو بيان کړى وي.

وَالْبُدْنَ جَعَلْنٰهَا لَكُمْ مِّنْ شَعَآئِرِ اللّٰهِ لَكُمْ فِيهَا خَيْرٌ ۖ فَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا صَوَآفَّ ۚ فَإِذَا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا فَكُلُوا مِنْهَا وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ ۚ كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿۳۶﴾

او اوښان غوايان (د هديې) ګرځولي دي مونږ دا تاسې ته له علائمو د (دين د) الله، شته تاسې ته په دې کې خير (ديني او دنيوي ګټه)، پس يادوئ نوم د الله په دې (اوښانو غوايانو د ذبحې په وخت کې)، په داسې حال چې ولاړ وي (په دريو پښو چې يوه يې ترې تړلې وي)، نو کله چې پرېوتل اړخونه د دوى (په ځمکه پس له حلالولو، او روح يې وخوت، او پس له يخېدلو) نو خورئ تاسې له دې نه (که مو خوښه وي)، او خورئ يې په صبر کوونکي او په بې صبره (سوالګرانو، فقيرانو)، همداسې (لکه چې ومو ښوده ذبحه د دوى)؛ تابع کړې دي مونږ دغه (مذبوحې) تاسې ته لپاره د دې چې شکر وباسئ تاسې (په دې نعمت).

تفسير: په دى آيت کريمه کې يې راوښود چې اوښ او نور د قرباني حيوانات هم د شعائر الله څخه دي چې د هغو په ښه او څربه ساتنه کې ستاسې لپاره دنيوي او اخروي ګټې شته نو تاسو لره ښايي چې دحلالولو په وخت کې پرى د الله تعالى نوم واخلئ بالخصوص، د اوښ د ذبحې ښه طريقه «نحر» دى، چې هغه قبلې ته مخامخ ودروئ، او يو لاس يې (ښي يا کيڼ) وتړئ، او په تېره يې زخم «ټپ» ووهئ، کله چې ټوله وينه يې ووته، او په ځمکه ولوېده، بيا يې بوټي بوټي کړئ، او ترې منتفع شئ، که ډېر اوښان وي؛ نو قطار يې ودروئ ! او په همدغه ترتيب سره يې نحر کړئ !.

په ﴿وَأَطْعِمُوا الْقَانِعَ وَالْمُعْتَرَّ﴾ الآية - کې يې دوه قسمه محتاجان وښوول، يو هغه چې پر صبر او استقامت سره ناست وي، سوال نه کوي، که لږ څه وررسيږي؛ پر هغه قناعت کوي، بل هغه چې بې قراري کوي، سوال کوي، دې خوا او هغه خوا ګرځي، که څه شى ورته ورکړ شي؛ خو بيا هم قرار نه کيني.

﴿كَذٰلِكَ سَخَّرْنٰهَا لَكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ﴾ الآية - يعني داسې لوى ساکښان (جاندار) چې هم په جثه او هم په قوّت کې له تاسې څخه زيات دي، ستاسې په واک او قبضه کې درکړل شوي دي، چې تاسې له هغو څخه راز راز خدمتونه اخلئ، او په ډېره آسانى سره يې حلالولى هم شئ، دا د الله تعالى لوى احسان دى، او ښايي چې د هغه شکر اداء کړ شي، نه داسې چې د شرک په غوره کولو سره بالعکس د هغه ناشکري وکړ شي.

لَنْ يَّنَالَ اللّٰهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلٰكِنْ يَّنَالُهُ التَّقْوٰى مِنْكُمْ ۚ

له سره نه رسيږي الله ته غوښې د دوى، او نه وينې د دوى، وليکن رسيږي دغه (الله) ته پرهېزګاري (اواخلاص چې ملګري وي له دغو مذبوحو سره بې له ريا) له تاسې.

تفسير: يعنې يواځې د حيوان په ذبح كولو، او په ځان او نورو د غوښې په خوړلو، يا د هغه د وينې په تويولو تاسې هيڅكله د الله تعالى خوښې او رضاء حاصلولى نشئ، او نه دغه غوښې، وينې او نور شيان د الله تعالى تر درباره رسېدى شي، بلكه د پاك الله دربار ته يواځې ستاسې د زړه تقوى او ادب رسيږي، چې په ډېره خوښى، او پوره رغبت يو قيمتي او نفيس شى د ده په حكم او اجازې سره د ده په نامه د ده كور ته بيايئ، او هلته يې قرباني كوئ، ګواكې د دې قربانۍ په وسيله مو دغه خبره ښكاره كړه چې مونږ پخپله هم ستا په لاره كې قرباني كېدلو ته همداسې حاضر او تيار يو !.

كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَاكُمْ ۗ وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ ﴿٣٧﴾

همداسې (لكه چې ذكر شو) تابع كړي يې دي دغه (څلور بولي) تاسې ته لپاره د دې چې په لويي ياد كړئ الله (او الله أكبر ووايئ د دوى د حلالولو په وخت كې) په هغې (طريقې) سره چې لاره يې ښوولې ده تاسې ته، او زيرى وركړه نېكوكارانو ته (د جنّت).

تفسير: يعنې «بسم الله والله أكبر، اللهم لك ومنك» ووايئ او ذبح كړئ، او د الله تعالى شكر اداء كړئ، چې ده د خپل محبّت او د عبوديت د اظهار څرنګه ښه لار راوښووله، او د يوه حيوان ذبح يې ګواكې ستاسې د ځان د قربانۍ په ځاى قائم مقام ودروله.

إِنَّ اللَّهَ يُدَافِعُ عَنِ الَّذِينَ آمَنُوا ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ ﴿٣٨﴾

بېشكه چې الله دفع كوي (د كفّارو مكر) له هغو كسانو څخه چې ايمان يې راوړى دى، بېشكه چې الله محبت نه كوي هر خيانتګر (له خالق او مخلوقاتو سره او) ناشكره.

تفسير: يعنې مسلمانان دې ډاډه او مطمئن اوسي، چې الله تعالى به ډېر ژر له دښمنانو څخه د دوى لاره صافه كړي، او تر مسجد الحرام پورې د رسېدلو او د هغه د متعلقه احكامو په تعميل كې به هيڅ مخالفت او مشكلات پاتې نشي، بې له كوم خوف او خطره به دوى حج او عمره اداء كوي، ګواكې د هغه بشارت امر چې په ﴿وَبَشِّرِ الْمُحْسِنِينَ﴾ كې وركړى شوى وو؛ د هغه يو زيرى او بشارت همدا دى.

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ خَوَّانٍ كَفُورٍ﴾ «بېشكه چې الله تعالى محبت نه كوي هر خيانت ګر له خالق او مخلوقاتو سره او ناشكره»، يعنې كه ناشكرو ټګانو ته تر يوه خاص ميعاد پورې مهلت وركړى شي؛ نو داسې خيال مه كوئ چې دوى د الله تعالى خوښيږي، دغه ډيل او مهلت په ځينو مصالحو او حكمتونو بناء دى، آخري انجام او پاى به يې همداسې وي، چې د حق خاوندان به غالب او د باطل خاوندان به مغلوب او باطل پرستان به بيخي له دې لارې څخه لرې كړى شي.

دا له هغو مباركو آيتونو څخه ړومبنى آيت دى، چې د قتال په اذن كې راغلي دي:

أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ

حكم وركړى شوى دى (د قتال) هغو كسانو ته چې قتال ورسره كاوه شي (د كفّارو له خوا) په دې سبب چې بېشكه په دوى ظلم شوى دى.

تفسير: تر هغه پورې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مكّه معظّمه كې وو، نو مسلمانانو ته دا حكم شوى وو، چې د كفّارو په سختيو او تكليفونو باندې صبر وكړي، او لاس ور ونه غځوي، لكه چې مسلمانانو پوره تر ديارلسو كلونو پورې ډېر سخت تكليفونه او ظلمونه وګالل (برداشت كړل)، او د كفّارو د زهره چوونكو ظلمونو او تېريو په مقابل كې يې بې مثاله صبر، استقامت او ثبات ښكاره كړ، كله چې مدينه منوره دار الاسلام وګرځيد او د مسلمانانو يوه وړه

ډله په دغه مستقل مرکز کې سره یو ځای شوه نو هغو مظلومو مسلمانانو نه چې کفارو به تل وربانديې ظلمونه کول او جنګونه به يې ورسره کول اجازه ورکړې شوه بلکه حکم ورته وشو چې دغه ظالمانو په مقابل کې توری وکاږی، او د خپلې ډلې او دين حفاظت په پوره غيرت سره وکړي.

﴿وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ۝٣٩﴾

او بېشکه چې الله په مرسته د دوی خامخا ښه قادر دی.

تفسير: يعني ای مؤمنانو ! له خپل قلّت او بې سروسامانۍ څخه مه ډارېږئ، الله تعالی يوه ډېره وړوکې بې وسيلې ډله هم د دنيا د لويو لويو فوځونو او سلطنتونو په مقابل کې بريالی (کامیابه) کولی شي، په حقيقت کې دا په يو مالک الملکوتي طرز له مسلمانانو سره د نصرت او مرستې وعده ده.

﴿الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِن دِيَارِهِم بِغَيْرِ حَقٍّ إِلَّا أَن يَقُولُوا رَبُّنَا اللَّهُ ۗ وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ النَّاسَ بَعْضَهُم بِبَعْضٍ لَّهُدِّمَتْ صَوَامِعُ وَبِيَعٌ وَصَلَوَاتٌ وَمَسَاجِدُ يُذْكَرُ فِيهَا اسْمُ اللَّهِ كَثِيرًا ۗ وَلَيَنصُرَنَّ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ۝٤٠﴾

(دغه مظلومان مهاجران) هغه (کسان) دي چې ايستل شوي دي له کورونو خپلو په ناحقه سره، (او بل هيڅ سبب د اخراج نه وو مګر دا) چې ويل به دغو (مؤمنانو): رب ځمونږ (خالص يوائځې) الله دی، او که چېرې نه وي دفع کول د الله خلقو لره ځينې د دوی لره په ځينو نورو بانديې؛ خامخا نړولې شوې به وې صومعې، او کليساګانې او د يهودانو عبادتخانې او مسجدونه، چې ياداوه شي په هغو کې نوم د الله ډېر، او خامخا مرسته به وکړي هرومرو الله له هغه چا سره چې مرسته کوي (دين د) دغه (الله) سره، بېشکه چې الله خامخا قوي (د خپلو احکامو په تنفيذولو کې) ډېر زور والا دی (په هر چا).

تفسير: يعني هغه مهاجر مسلمانان چې له خپلو کورونو څخه وويستل شول، د هغوی بل هيڅ جرم نه وو، او نه پرې چا څه دعوی درلوده، پرته له دې نه چې دوی ولې يو الله تعالی ته خپل رب وايي؟، او ولې خښتو او ډبرو ته سجدې نه کوي؟.

﴿وَلَوْلَا دَفْعُ اللَّهِ﴾ الآية ـ يعني که په کوم وخت او کوم حالت کې هم يو جماعت ته د بل جماعت سره د جنګ او جګړې اجازه نه وی؛ نو دا مقدّس مقامات او مهم يادګارونه د تل لپاره د وجود له صفحې څخه محو او له منځه به يې لړې شوي وی، هيڅ يو معبد، تکيه، عبادتخانه، خانقاه، مسجد او مدرسه به محفوظه نه وی پاتې شوی، نو له دې کبله ضروري شوه، چې د بدۍ طاقتونه اګر که ډېر سره جمع هم شي؛ خو د قادر ذات له طرفه به داسې يو وخت راشي، چې د نېکۍ په مقدسو لاسونو سره به د بدۍ د حملې مدافعت وکړی شي، او الله تعالی به د خپل دين د مرستې کوونکو سره پخپله مرسته وکړي، او دوی به د حق او صداقت په وسيله په دښمنانو غالب کړي.

که د مدافعت او محافظت دغه قانون نه وی؛ نو په خپله خپله زمانه کې به نه د عيسايي راهبانو صومعې (حجرې) ودانې پاتې وی، او نه به د نصرانيانو بيع (کليساګانې) او نه به د يهوديانو صلوات (عبادتخانې) او نه به د مسلمانانو هغه مساجد چې د الله تعالی ذکر په کې ډېر زيات کيږي؛ پاتې وی، او دغه ټول معابد به نړول شوي او له منځه تللي وی، نو د دې عام قانون لاندې هيڅ داسې دليل نشته چې مسلمانانو ته په يو مناسب وخت کې د دوی د دښمنانو سره د جنګېدلو اجازه ورنه کړه شي.

﴿اَلَّذِيْنَ اِنْ مَّكَّنّٰهُمْ فِي الْاَرْضِ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتَوُا الزَّكٰوةَ وَاَمَرُوْا بِالْمَعْرُوْفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ ۝۴۱﴾

(دغه مهاجر مظلومان) هغه کسان دي چې که چېرې قدرت ورکړو مونږ دوی ته په ځمکه کې (په دښمن باندې د غلبې په اعتبار)؛ نو قائموي دوی (سم اداء کوي به سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکوي به زکات، او امر حکم به کوي (خلقو ته) په معروف (په نېک شرعي کار) سره، او منع کوي به (خلق) له بد کار څخه، او خاص د الله په اختیار کې ده آخره خاتمه د ټولو کارونو.

تفسیر: دا یواځې د هغو مسلمانانو بیان دی چې پرې ظلمونه شوي دي، او له کورونو څخه ایستل شوي دي، یعنې الله تعالی به ولې له دوی سره مرسته نه کوي؟ کله چې دوی داسې یو قوم دی، چې که الله تعالی دوی ته د ځمکې د مخ سلطنت هم ورکړي؛ خو بیا هم دوی د الله تعالی له یاده نه غافلیږي، او پخپله هم په بدني او مالي نېکیو کې مصروف دي، او کوښښ کوي چې نور هم په همدغه سمه لاره برابر کړي، لکه چې پاک الله دوی ته د دې ځمکې حکومت ورکړ، او کومې وړاندوینې (پیشگویۍ) چې پخوا شوې وې؛ هغه ټکي ټکي رښتیا شوې: «فلله الحمد علی ذلک».

له دې آیت څخه د أصحابو کرامو رضي الله عنهم خصوصا د مهاجرینو او په هغو کې په أخص الخصوص د راشدینو خلفاوو رضي الله عنهم حقانیت، مقبولیت او منقبت ثابت شول.

﴿وَلِلّٰهِ عَاقِبَةُ الْاُمُوْرِ﴾ یعنې که څه هم نن مسلمانان کمزوري او کفّار غالب او قوي ښکاري؛ لیکن دغه کار د الله تعالی په واک او اختیار کې دی، چې بالآخر مسلمانان په دوی غالب، منصور او بریالي (کامیاب) کړي.

﴿وَاِنْ يُّكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّعَادٌ وَّثَمُوْدُ ۝۴۲ وَقَوْمُ اِبْرٰهِيْمَ وَقَوْمُ لُوْطٍ ۝۴۳ وَّاَصْحٰبُ مَدْيَنَ ۚ وَكُذِّبَ مُوْسٰى فَاَمْلَيْتُ لِلْكٰفِرِيْنَ ثُمَّ اَخَذْتُهُمْ ۚ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ۝۴۴﴾

او که چېرې دروغجن وشمېري (دغه کفّار تا ای محمده ! نو مه خفه کېږه !) پس په تحقیق دروغجن شمېرلي وو (رسولان خپل) پخوا له دغه (قوم ستا) قوم د نوح، او (قوم د) عاد، او (قوم د) ثمود. او قوم د ابراهیم او قوم د لوط (انبیاوو خپلو لره). او اهل (د ښار) د مدین (شُعیب لره)، او دروغجن گڼل شوی وو موسی (د مصري قبطیانو له خوا)، نو مهلت مې ورکړی وو کافرانو ته بیا (ناڅاپه) مې ونیول دوی (په عذاب سره)، پس څرنگه وو انکار ځما (په دوی په تغییر د نعمت سره؟).

تفسیر: یعنې دا کافران دې په دې نه مغروره کیږي چې دوی ته مهلت ورکړل شوی، پخوانی قومونو هم داسې د خپلو پیغمبرانو تکذیب کړي وو نو څه وخت چې ونیول شو نو وگورئ د هغوی حال څه شو.

﴿فَكَاَيِّنْ مِّنْ قَرْيَةٍ اَهْلَكْنٰهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلٰى عُرُوْشِهَا وَبِئْرٍ مُّعَطَّلَةٍ وَّقَصْرٍ مَّشِيْدٍ ۝۴۵﴾

پس ډېر دي له کلیو (او ښارونو) څخه چې هلاک کړي دي مونږ (اهل د) هغو، حال دا چې دغه (اهل د هغې قریې) ظالمان وو (په نفسونو خپلو)، پس هغه (کلي) پریوتلي دي (دېوالونه یې د پاسه) په چتونو بامونو خپلو باندې، او ډېر کوهیان دي چې (ډک له اوبو) بېکاره پراته دي، او ډېرې مانۍ پخې لوړې (اوچتې) (تشې پاتې دي، او خاوندان یې هلاک شوي دي).

**تفسير:** يعني د خپلو بنسټونو (بنيادونو) د خوځېدلو په اثر اول يې چتونه ولوېدل، بيا يې دېوالونه ونړېدل، بيا ټولې ودانۍ پرې راولوېدې، او د چت ډېرې يې لا اوچتې کړې، دا يې د هغو د لاندې باندې کېدلو صورت وښود.

﴿وَبِئۡرٖ مُّعَطَّلَةٖ﴾ يعني هغه کوهيان چې پرې د اوبو د راويستونکو هجوم او ګڼه ګوڼه وه؛ نن هلته هيڅوک نشته، چې د هغو بوکې راوکاږي، او هغه ډېرې لوېې لوېې او پخې او هسکې ودانۍ چې په چونه، سمټو او نورو پخو موادو سره ودانې شوې وې؛ خرابې او د ورانو کنډرو په شان پرتې دي، او هيڅوک په کې نه اوسيږي.

أَفَلَمۡ يَسِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَتَكُونَ لَهُمۡ قُلُوبٞ يَعۡقِلُونَ بِهَآ أَوۡ ءَاذَانٞ يَسۡمَعُونَ بِهَاۖ فَإِنَّهَا لَا تَعۡمَى ٱلۡأَبۡصَٰرُ وَلَٰكِن تَعۡمَى ٱلۡقُلُوبُ ٱلَّتِي فِي ٱلصُّدُورِ ۝٤٦

آيا پس نه دي ګرځېدلي دوی (دغه کفار) په ځمکه کې، پس وي دوی لره زړونه چې فکر يې کولی په هغو (زړونو سره په بده خاتمه د کارونو)، يا (وي دوی لره) غوږونه چې خبرې يې اورېدلې دوی په هغو (غوږونو سره د کفارو د اهلاک، چې عبرت پرې واخلي)، پس قصه دا ده چې نه دي ړندې سترګې (ظاهري د دوی)، وليکن ړانده دي زړونه (د دوی) هغه چې دننه په سينو د دوی کې دي (ځکه چې پرې عبرت نه اخلي).

**تفسير:** يعني د دغو ورانو او تباه شوو ودانيو د کنډرو د ليدلو څخه هم هيڅکله دوی ته داسې يو فکر او چرت (خيال) پيدا نشو، او غور او اندېښنه يې ونه کړه، چې د حق په لاره راشي، او په رښتيا خبره وپوهيږي، او زړونه يې بينا او غوږونه يې خلاص شي.

نو قصه دا ده چې که په سترګو يې وليدل، خو پخپلو زړونو کې يې پرې غور او فکر ونه کړ، نو دغه ليدل هم د نه ليدلو په شان دي، ګواکې د دوی ظاهري سترګې خلاصې دي، مګر باطني سترګې يې ړندې دي، او په حقيقت کې ډېر خطرناکه مرض د زړه ړندوالی دی، (العياذ بالله).

وَيَسۡتَعۡجِلُونَكَ بِٱلۡعَذَابِ وَلَن يُخۡلِفَ ٱللَّهُ وَعۡدَهُۥۚ وَإِنَّ يَوۡمًا عِندَ رَبِّكَ كَأَلۡفِ سَنَةٖ مِّمَّا تَعُدُّونَ ۝٤٧

او بيړه (تلوار) کوي (کفّار) په تا په (راوستلو د) عذاب، او له سره به خلاف ونه کړي الله په خپله وعده کې، او بېشکه يوه ورځ په نزد د رب ستا (له ورځو د آخرت، اوږده ده) لکه زر کاله له هغو کلونو څخه چې شمېرئ يې تاسې (په دنيا کې).

**تفسير:** يعني مقرر عذاب په خپل ټاکلي وخت خامخا راتلونکی دی، او دغه بې ځايه شورماشور، استهزاء، تکذيب او د عذاب ژر غوښتل هيڅ يوه ګټه نه لري، «بېشکه يوه ورځ په نزد د رب ستا له ورځو دآخرت چې ورځې د عذاب د کفّارو دي؛ اوږده ده لکه زر کاله له هغو کلونو چې شمېرئ يې تاسې په دنيا کې»، يعني ستاسې يو زر کلونه د ده په نزد د يوې ورځې سره برابر دي، لکه چې نن مجرمين د ده په واک او اختيار کې دي؛ د زرو کلونو د تېرېدلو څخه وروسته هم داسې د ده په قبضه او اختيار کې دي، هيچېرې ترې پټېدلی او تښتېدلی نه شي.

وَكَأَيِّن مِّن قَرۡيَةٍ أَمۡلَيۡتُ لَهَا وَهِيَ ظَالِمَةٞ ثُمَّ أَخَذۡتُهَا وَإِلَيَّ ٱلۡمَصِيرُ ۝٤٨

او ډېر دي له (اهل د پخوانيو ښارونو او) کليو چې مهلت ورکړی وو ما دوی ته (په خپل رحمت سره) حال دا چې ظالمان وو، بيا ونيول ما هغه (ناڅاپه په سخت عذاب)، او خاص ماته راتله د هر چا دي (په آخرت کې د جزاء لپاره).

تفسير: یعنې آیا په مهلت ورکولو به هغوی چېرې وتښتي؟ یا به په کوم ځای کې پټ شي؟ بالآخر د ټولو رجوع او بېرته راتګ ځمونږ په لوري دی، مونږ دوی ټول ونیول او تباه مو کړل.

قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَآ أَنَا۠ لَكُمۡ نَذِيرٞ مُّبِينٞ ﴿٤٩﴾

ووایه (ای محمده !) ای خلقو ! بېشکه همدا خبره ده چې زه تاسې ته ویروونکی یم ښکاره (له جحیم څخه).

تفسير: یعنې ځما کار خبرول او ویرول دي، څو تاسې د فضائلو غوښتونکي او له رذائلو څخه په ډډه شئ، د عذاب نازلول ځما په اختیار کې نه دي، او هغه د الله تعالی په اختیار کې دی، هغه به د مطیع او عاصي په منځ کې فیصله وکړي، او هر یو به د هغه له حال سره سم مناسب ځای ته رسوي.

فَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ لَهُم مَّغۡفِرَةٞ وَرِزۡقٞ كَرِيمٞ ﴿٥٠﴾

پس هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ شته دوی ته ښښنه (د ګناهونو)، او روزي عزتناکه (چې جنت دی).

وَٱلَّذِينَ سَعَوۡاْ فِيٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُوْلَٰٓئِكَ أَصۡحَٰبُ ٱلۡجَحِيمِ ﴿٥١﴾ وَمَآ أَرۡسَلۡنَا مِن قَبۡلِكَ مِن رَّسُولٖ وَلَا نَبِيٍّ إِلَّآ إِذَا تَمَنَّىٰٓ أَلۡقَى ٱلشَّيۡطَٰنُ فِيٓ أُمۡنِيَّتِهِۦ فَيَنسَخُ ٱللَّهُ مَا يُلۡقِي ٱلشَّيۡطَٰنُ ثُمَّ يُحۡكِمُ ٱللَّهُ ءَايَٰتِهِۦۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ﴿٥٢﴾

او هغه کسان چې کوښښ کوي په (بطلان د) آیتونو ځمونږ کې په داسې حال کې چې عاجز کوونکي ځمونږ وي (د دوی پخپل ګمان)؛ همدغه کسان ملګري د دوزخ دي (چې تل به په کې سوځي). او نه وو لېږلی مونږ پخوا له تا (ای محمده !) هیڅ رسول او نه هیڅ نبي مګر په هغه وخت کې چې لوستل به یې کول، نو وبه غورځاوه شیطان په لوستلو د ده کې له ځانه خپله وسوسې او شکونه، پس لرې کوي الله هغه کلمې چې غورځولې دي شیطان، بیا محکموي الله آیتونه خپل، او الله ښه عالم (په ټولو احوالو) ښه حکمت لرونکی دی (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسير: د آیت په تفصیل کې اختلاف دی: ډېر بهتر او آسان تفسیر هغه دی چې د هغه مختصر اصل له اسلافو څخه منقول دی، یعنې (تمنّي) د قرائت اوتلاوت په معنی واخیستل شي، مطلب دا چې له قدیم راهیسې دغه عادت جریان لري، کله به کوم نبي یا رسول علیه السلام کومه خبره بیانوله، یا به یې د الله تعالی آیتونه اورورل؛ شیطان به د ځینو خبرو په متعلق د ډېرو خلقو په زړونو کې ډول ډول وسوسې غورځولې، او رنګا رنګ شکونه او شبهې به یې پیدا کولې، مثلا رسول الله صلی الله علیه وسلم د ﴿حُرِّمَتۡ عَلَيۡكُمُ ٱلۡمَيۡتَةُ﴾ آیت ولوست، شیطان د خلقو په زړونو کې دا شبهه واچوله ،چې وګورئ د خپل لاس وژل شوی حیوان حلال بولي، او الله وژلی حرام ګڼي؟، یا چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه آیت ولوست: ﴿إِنَّكُمۡ وَمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ﴾؛ شیطان په کې داسې شبهه وغورځوله چې په ﴿وَمَا تَعۡبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ ملائکة الله، عیسی المسیح او عُزیر علیهم السلام هم شامل دي، یا کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مسیح علیه السلام په نسبت د ﴿وَكَلِمَتُهُۥٓ أَلۡقَىٰهَآ إِلَىٰ مَرۡيَمَ وَرُوحٞ مِّنۡهُ﴾ آیت ولوست؛ شیطان د خلقو په افکارو کې داسې مفکوره پیدا کړه چې له دې نه د مسیح علیه السلام ابنیت (ځوی ولی) او الوهیت ثابتیږي.

د دغه شيطاني القاء په ابطال او ترديد کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله تعالی هغه بیّنات آیتونه واورول، چې بيخي صاف او محکم وو، او داسې پخې خبرې يې وروښودې؛ چې د هغو له اورېدلو څخه شک او شبهې ته له سره ځای او موقع پاتې نه شوه، ګواکې د «متشابهاتو» د ظاهري سطح په بناء کومه اغواء او اخلال چې شيطان يې غورځوي؛ آيات محکمات د هغه بېخ او بنياد وباسي، چې د هغو د اورېدلو څخه ټول شکونه او شبهې له منځه ورک او فناء کيږي.

دا دوه قسمه آيتونه ولې نازلولی شي؟ شياطينو ته د دومره وسوسې اچولو او تصرّف موقع ولې ورکوله کيږي؟ او د داسې آيتونو هغه احکام چې وروسته توضيح کيږي؛ ولې په ابتداء کې نه تشريح کيږي؟ دغه ګرد امور د الله تعالی له غير محدود علم او حکمت څخه نشأت کوي، الله تعالی دا دنيا علمًا او عملاً دار الامتحان ګرځولې ده، لکه چې په داسې چارو سره د بندګانو آزمويښت کوي، چې څوک د خپل زړه د ناروغتيا يا د سختی له سببه د شکونو او د شبهو په خټو او جبو کې ننبلي؟ او کوم پوه عقلمن انسان د خپل علم او تحقيق په قوّت د ايمان لوړ مقام ته رسيږي؟.

ربښتيا خبره خو دا ده که انسان په ښه نيت او ايمان داری او ښه عقيده سره پوهېدل وغواړي؛ نو پاك الله هم د ده مرسته کوي، او په سمه لاره يې بيايي، او ثبات او استقامت ورپه برخه کوي، پاتې شول منکرين او شک کوونکي؛ هغوی ته تر قيامته پورې هم ډاډ او اطمينان نه شي حاصلېدی.

ځمونږ په دې تقرير کې تر ډېره حده پورې د ډېرو آيتونو مطلب بيان شو، پوه خلق کولی شي چې ځمونږ د دې تقرير اجزاء د هغو آيتونو له اجزاوو سره بې تکلّفه تطبيق کړي، دا آيتونه لکه چې مونږ د (آل عمران) د سورت په ابتداء کې بيان کړي دي، له: ﴿هُوَ الَّذِيٓ اَنۡزَلَ عَلَيۡكَ الۡكِتٰبَ مِنۡهُ اٰيٰتٌ مُّحۡكَمٰتٌ﴾ الآية ـ سره ډېر مشابه دی، لکه چې په ﴿اِلَّآ اِذَا تَمَنّٰٓى اَلۡقَى الشَّيۡطٰنُ فِيۡٓ اُمۡنِيَّتِهٖ﴾ کې د متشابهاتو او په ﴿ثُمَّ يُحۡكِمُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ﴾ کې د محکماتو ذکر وشو، او په ﴿لِّيَجۡعَلَ مَا يُلۡقِى الشَّيۡطٰنُ فِتۡنَةً﴾ الآية ـ کې د زائغينو دوه قسمونه بيان شول، چې په هغو کې د ﴿لِّلَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ﴾ کار د تأويل ابتغاء او د ﴿وَّالۡقَاسِيَةِ قُلُوۡبُهُمۡ﴾ غرض د فتنې ابتغاء ده، وروسته ﴿وَّلِيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ﴾ الآية ـ د ﴿وَالرّٰسِخُوۡنَ فِى الۡعِلۡمِ يَقُوۡلُوۡنَ﴾ آيت په ځای وګڼئ !، او هلته هغه دعا چې په ﴿رَبَّنَا لَا تُزِغۡ قُلُوۡبَنَا بَعۡدَ اِذۡ هَدَيۡتَنَا﴾ سره کړی شوې وه؛ دلته د هغې اجابت ذکر په ﴿وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡٓا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ﴾ سره کړی شوی دی، او د ﴿رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوۡمٍ لَّا رَيۡبَ فِيۡهِ﴾ سره دغه آيت مناسب واقع شو: ﴿وَلَا يَزَالُ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا فِىۡ مِرۡيَةٍ مِّنۡهُ حَتّٰى تَاۡتِيَهُمُ السَّاعَةُ﴾ إلى قوله: ﴿يَحۡكُمُ بَيۡنَهُمۡ﴾.

لِّيَجۡعَلَ مَا يُلۡقِى الشَّيۡطٰنُ فِتۡنَةً لِّلَّذِيۡنَ فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ مَّرَضٌ وَّالۡقَاسِيَةِ قُلُوۡبُهُمۡ‌ؕ وَاِنَّ الظّٰلِمِيۡنَ لَفِىۡ شِقَاقٍۢ بَعِيۡدٍ ۙ﴿۵۳﴾ وَّلِيَعۡلَمَ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡعِلۡمَ اَنَّهُ الۡحَـقُّ مِنۡ رَّبِّكَ فَيُؤۡمِنُوۡا بِهٖ فَتُخۡبِتَ لَهٗ قُلُوۡبُهُمۡ‌ؕ وَاِنَّ اللّٰهَ لَهَادِ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۵۴﴾

لپاره د دې چې وګرځوي (الله) هغه شي چې غورځوي يې شيطان ازمېښت لپاره د هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض (د شک او نفاق) دی، او (بل لپاره د هغو چې) سخت دي زړونه د دوی، او بېشکه ظالمان خامخا په مخالفت ډېر لرې کې دي (له حقه). او (دغه القاء د دې لپاره ده چې) په يقين سره پوه شي هغه کسان چې ورکړی شوی دی دوی ته علم، چې بېشکه دا قرآن حق دی له طرفه د رب ستا، پس ايمان به راوړي دوی په ده سره، نو نرم (آرام به شي انقيادًا) دغه قرآن ته زړونه د دوی، او بېشکه الله خامخا لاره ښوونکی دی هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی طرف د سمې صافې لارې (د اسلام) ته.

وَلَا يَزَالُ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً أَوْ يَأْتِيَهُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ ﴿٥٥﴾

او تل به وي هغه کسان چې کافران شوي دي په شک کې له دې (قرآنه یا له سمې لارې یا له رسوله)، تر هغه پورې چې راشي دوی ته قیامت ناڅاپه، یا راشي دوی ته عذاب د ورځې شنډې (سختې د قیامت چې د نجات هیڅ لاره په کې نه وي).

**تفسیر:** یعنې مقصد په خپله د قیامت د هولناکې حادثې ناڅاپي رارسېدل، یا د قیامت د عذاب راتلل دي، او یا شاید د ﴿عَذَابُ يَوْمٍ عَقِيمٍ﴾ څخه د دنیا عذاب مراد وي، یعنې په همدې دنیا کې به داسې سزا درکړه شي، چې په هیڅ صورت به ورڅخه خلاصېدل امکان ونه لري.

الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ

ملک سلطنت په دغه ورځ د قیامت خاص الله ته دی، فیصله به کوي (په دغه ورځ کې) په منځ د دوی (د مؤمنانو او کفّارو کې).

تفسیر: یعنې د قیامت په ورځ کې به یواځې د الله تعالی سلطنت او حکومت وي، او د بل هیچا ظاهري او مجازي حکومت نوم او نښان به نه وي، په هغه وخت کې به د ګردې دنیا عملي فیصله کېږي، چې تفصیل یې دا دی:

فَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٥٦﴾ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَأُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿٥٧﴾ وَالَّذِينَ هَاجَرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ قُتِلُوا أَوْ مَاتُوا لَيَرْزُقَنَّهُمُ اللَّهُ رِزْقًا حَسَنًا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٥٨﴾ لَيُدْخِلَنَّهُم مُّدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ﴿٥٩﴾

پس هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه) په جنتونو د نعمتونو کې به وي. او هغه کسان چې کافران شوي دي، او نسبت د دروغو یې کړی دی آیتونو ځمونږ ته؛ پس دغه کسان شته دوی ته عذاب سپکوونکی. او هر هغه کسان چې خپل کورونه یې پرېښي دي په لاره د الله کې (د جهاد، طاعت او د الله د رضاء لپاره) بیا ووژلي شي (په جهاد کې) یا مړه شي (پخپل مرګ)؛ نو خامخا روزي به ورکړي هرومرو دوی ته الله روزي نېکه (د جنّت)، او بېشکه الله خامخا هم دی غوره د (ټولو) روزي ورکوونکو دی. خامخا داخل به کړي (الله) هرومرو دوی په داسې یو ځای (د جنّت) کې چې خوښ به کړي دوی هغه (ځایونه د جنتونو)، او بېشکه الله خامخا ډېر عالم (په ټولو احوالو)، ښه حلم لرونکی دی (په تأخیر د عقوبت لپاره د رجوع).

ذَٰلِكَ ۖ وَمَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوقِبَ بِهِ ثُمَّ بُغِيَ عَلَيْهِ لَيَنصُرَنَّهُ اللَّهُ

(خبره) همدا ده (لکه چې ومو ویله)، او هر هغه چې بدل واخیست په مثل د هغه (ضرر) چې معذّب شوی دی په هغه سره، بیا (دویم ځل) ظلم وکړ شي په ده باندې؛ نو خامخا مرسته به وکړي خامخا له ده سره الله.

تفسیر: یعنې که مظلوم له ظالم څخه واجبې بدلې واخلي، بیا ظالم پرې بل ځلې ظلم وکړي؛ نو دی بیا هم مظلوم واقع شو، او الله تعالی به بیا ورسره مرسته وکړي، لکه چې عادت یې دی، بالآخر د مظلومانو حمایت کوي: «واتّق دعوة المظلوم فإنه لیس بینها وبین الله حجاب».

إِنَّ اللَّهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ۝٦٠

بېشکه الله خامخا ښه عفو کوونکی دی (د تجاوزاتو) ډېر بښونکی دی (د خطیّاتو).

تفسیر: یعنې بندګانو ته هم ښایي چې پخپلو شخصي او معاشراتو چارو او معاملاتو کې د عفوې او بښنې عادت زده کړي، او هیڅکله دې د انتقام او بدل اخیستلو په فکر نه اوسي.

شاه صاحب رحمه الله لیکي: «یعنې واجبې بدلې اخیستونکي ته الله تعالی عذاب نه ورکوي، که څه هم بدل نه اخیستل ښه او غوره کار دی، د کفّارو د اذیت بدل مسلمانانو له کفّارو څخه د «بدر» په غزا کې واخیست، لیکن کفّارو بیا په «أحد» او «أحزاب» کې په تیري او تجاوز لاسونه پورې کړل، چې بیا الله تعالی مسلمانانو سره پوره مرسته وکړه.

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَأَنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ۝٦١

دغه (نصرت په سبب د دې دی) چې بېشکه الله ننه باسي شپه په ورځ کې او ننه باسي ورځ په شپه کې (چې کله ورځ لنډه شپه اوږدوي، کله شپه لنډه ورځ اوږدوي)، او بېشکه الله ښه اورېدونکی دی (د ټولو اقوالو) ښه لیدونکی دی.

تفسیر: یعنې الله تعالی د دومره لوی قدرت او قوّت څښتن (مالک) دی، چې د شپې او ورځې اړول او راړول او د هغوی لنډول او اوږدول د ده په لاس کې دي، او یواځې د ده په حکم، اراده، او تصرّف کله ورځ اوږدیږي، او کله شپه اوږدیږي، نو آیا دغه مطلق قادر په دې باندې نه دی قادر چې یو مظلوم قوم یا شخص سره مرسته وکړي، او د ظالمانو له منګلو څخه یې خلاص کړي؟ بلکه دوی په هغوی باندې غالب، قاهر، قادر او مسلّط کړي، په دې آیت کې یې دې ته اشاره وکړه چې حالات ډېر ژر د شپې او ورځې په شان بدلیدونکي دي، څرنګه چې پاک الله د شپې تیاره د ورځې په رڼا له منځه وړي، همداسې به د کفر او شرک ځمکې هم د اسلام په غېږ کې ورکړي، او بېشکه چې پاک الله ښه اورېدونکی دی د ټولو اقوالو، ښه لیدونکی دی د ټولو اشیاوو، یعنې د مظلوم غږ او آواز هم اوري، او د ظالم چارې او اعمال هم ویني.

ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ وَأَنَّ مَا يَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ هُوَ الْبَاطِلُ وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيرُ ۝٦٢

دغه (مرسته په دې ده چې) بېشکه الله همدی دی حق ثابت، او بېشکه هغه چې بولي یې (کفّار او عبادت یې کوي) بې له الله څخه؛ همدغه باطل دي، او بېشکه الله همدی (له ټولو څخه) ښه لوړ ښه لوی دی.

تفسیر: یعنې له الله څخه پرته داسې عظیم الشأن کارونه او انقلابونه د بل چا له لاسه پوره کېدی شي؟ بلکه نه شي، په واقع کې صحیح او ربښتینی بر حق معبود همدغه یو الله تعالی دی، نور ټول معبودان بیخي غلط او له یوه سره زائل او ټول باطل دي، ښایي چې تاسې هم دغه واحد لا شریک ذات خپل الله وګڼئ، چې له ټولو څخه اعلی او اولی او ډېر ښه مولی دی، او دغه لوی شان په اتفاق سره د همدغه یو الله جل وعلا شأنه په ذات او صفاتو کې شته.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً ۗ إِنَّ اللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٌ ﴿٦٣﴾

آيا نه وينې ته (نه يې خبر اى مخاطبه) چې بېشكه الله نازلې كړې دي له (طرفه د) اسمان څخه اوبه؛ پس ګرځي ځمكه (په دې اوبو سره) تكه شنه (پس له هغه چې وچه سپېره وه)؛ بېشكه الله ښه مهربان عالم دى په پټو تدابيرو، ښه خبردار دى (په ټولو شيانو).

تفسير: يعنې همداسې به د كفر او شرک وچه او شاړه ځمكه د اسلام په باران باندې شنه او سمسوره كړي، او هم هغه الله جل جلاله ښه پوهيږي، چې په څه شان د باران د اوبو په وسيله شينكي او نباتات زرغونيږي، او د ځمكې په دننه كې داسې تدبير او تصرّف كوي، چې د هغه په اثر وچه شاړه ځمكه د اوبو او نورو اجزاء ځان ته جذب او راكاږي، چې په دې ترتيب ځمكه شنه او سمسوره كيږي.

لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦٤﴾

خاص همدغه (الله) لره دي هر څه چې په اسمانونو كې او هر څه چې په ځمكه كې دي (سره له اسمانونو او ځمكې خلقًا ملكا وعبيدًا)، او بېشكه الله خامخا هم دى غني بې پروا دى (له مخلوقاتو خپلو) ښه ستايلى شوى (په صفاتو او افعالو خپلو كې).

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ وَالْفُلْكَ تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِأَمْرِهِ وَيُمْسِكُ السَّمَاءَ أَن تَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ إِلَّا بِإِذْنِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٥﴾

آيا نه دى ليدلى تا (نه يې خبر اى مخاطبه) چې بېشكه الله مسخّر (تابع) كړي دي تاسې ته هر هغه چې په ځمكه كې دي، او (مسخّره كړې يې ده) بېړۍ چې ګرځي په سيند كې په حكم د هغه سره، او ساتي اسمان له دې نه چې راولويږي په ځمكه باندې مګر خو په حكم د هغه سره، بېشكه الله پر خلقو خامخا ښه نرمي كوونكى ښه مهربان دى.

تفسير: يعنې الله تعالى نه ستاسې او نه د بل چا څه پروا لرله، محض پخپل شفقت او مهربانۍ سره يې د وچې او لمدې، بحر او بر ټول شيان يې تاسې ته تابع او مسخر كړل، او همدغه الله تعالى په خپل قدرت سره اسمان، سپوږمى، لمر او ستوري په هوايي فضاء كې له كومې ظاهري ستنې معلّق ساتلي دي، چې له سره له خپله ځايه نه راښكته كيږي، او نه رالويږي، او كه رالويدلي وى، يا يو د بل سره يې ټكر كړى وى، نو ستاسې ځمكې به يې ټوټې او ذرې كړي وى، څو چې د الله تعالى له خوا د نظام د بدلون حكم نه وي صادر شوى، تر هغه پورې به دغه ګردې كرې هم داسې پخپلو ځايونو قائمې وي، او مجال نه لري چې د يوه انچ په اندازه له خپل ځايه بې ځايه شي، د ﴿إِلَّا بِإِذْنِهِ﴾ استثناء محض د قدرت د اثبات د تأكيد لپاره ده، يا شايد د قيامت واقعې ته اشاره وي، (والله أعلم).

وَهُوَ الَّذِي أَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ۗ إِنَّ الْإِنسَانَ لَكَفُورٌ ﴿٦٦﴾

او دغه (الله) هغه (قادر مطلق دى) چې (يې) ژوندي كړي يئ تاسې (په دركولو د روح سره پس له هغه چې نطفې وئ)، بيا به مړه كاندي تاسې (كله چې اجل مو پوره شي)، بيا به ژوندي كړي تاسې (په قيامت كې په بعث سره)، بېشكه انسان خامخا ناشكره دى.

تفسير: همداسې هغه قوم چې د کفر او جهل په روحاني مرګ سره مړه شوي وو؛ د ایمان او معرفت په روح سره به هغوی بیا ژوندي کړي.

(خو بېشکه انسان خامخا ناشکره دی د نعمتونو د الله تعالی) یعني د دغومره احساناتو او انعاماتو په لیدلو سره هم د هغه حق نه مني، او قدر یې نه پېژني، او د هغه حقیقي منعم څخه مخ اړوي، او نورو ته خپل سر ټیټوي.

لِكُلِّ أُمَّةٍ جَعَلْنَا مَنسَكًا هُمْ نَاسِكُوهُ فَلَا يُنَازِعُنَّكَ فِي الْأَمْرِ وَادْعُ إِلَىٰ رَبِّكَ إِنَّكَ لَعَلَىٰ هُدًى مُّسْتَقِيمٍ ﴿٦٧﴾ وَإِن جَادَلُوكَ فَقُلِ اللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٦٨﴾ اللَّهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٦٩﴾

لپاره د هر یوه امّت مقرره کړې ده مونږ یوه لاره د بندګۍ چې دوی عمل کوونکي دي د هغه، پس نه ښایي چې جګړه وکړي (دا خاوندان د ادیانو) خامخا له تا سره په دې کار (دین) کې، (ځکه چې محمدي دین حق او ظاهر دی)، او بلنه کوه (د خلقو توحید او عبادت د) رب خپل ته، بېشکه ته یې خامخا په (هغه) سمه صافه لاره (چې برابره تللې ده حق ته). او که جګړه کوي (په امر د دین کې کفّار) له تا سره؛ نو ووایه (ای محمده ! دوی ته) چې الله ښه پوه دی په هغه (جګړه او عناد) چې کوئ یې تاسې. الله به حکم وکړي په منځ ستاسې کې په ورځ د قیامت په هغه شي کې چې وئ تاسې چې په هغه کې مو اختلاف کاوه (چې د دین امر دی).

تفسير: ټول انبیاء د دین په اصولو کې سره متفق دي، هو ! د هر امّت لپاره الله تعالی د عبادت مختلف صورتونه په مختلفو زمانو کې ټاکلي دي، چې د هغو سره سم به هغو امّتونو د الله تعالی عبادت کاوه، لکه چې دې محمّدي امت ته هم یو خاص شریعت لېږل شوی دی، لیکن د دین اصل تل تر تله یو شي وو او دی، او پرته له الله تعالی څخه د بل هیچا او هیڅ شي لپاره عبادت نه دی مقرر کړی شوی، نو ځکه په توحید او نورو متفق علیه دیني مسائلو کې هیچا ته نه دي لایق او نه د هغه له حال سره څه مناسبت لري چې څه اختلاف او څه جګړه وکړي.

کله چې کافران په داسې واضح او ښکاره شیانو کې هم دعوی او جګړې وکړي؛ نو تاسې د هغوی هیڅ پروا مه کوئ ! تاسې په هم هغې سمې صافې لارې باندې روان اوسئ، او نور خلق هم هغې ته راوبولئ ! او د معاندینو د جګړې فیصله الله تعالی ته وسپارئ ! چې هغه د دوی په ګردو حرکاتو ښه پوه او خبر دی، د قیامت په ورځ کې به د دوی د دغو ټولو اختلافونو او جګړو عملي فیصله وکړي، ته د دعوت او تبلیغ فرض اداء کړه ! او د دوی په فکر کې ډېر سر مه خوږوه ! د داسې معاندینو علاج یوازې پاک الله سره دی.

أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ إِنَّ ذَٰلِكَ فِي كِتَابٍ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٧٠﴾

آیا نه پوهېږې ته (ای مخاطبه بلکه پوهېږې) چې بېشکه الله پوهېږي په هر هغه څه چې دي په اسمان کې او (هر هغه څه چې دي په) ځمکه کې، بېشکه دا (مذکوره شیان لیکل شوي دي) په کتاب (لوح محفوظ) کې، بېشکه دا (علم، لیکل د لوح محفوظ، فیصله د قیامت) په الله اسان دي.

تفسير: یعني د الله جل جلاله علم د دوی په اعمالو کې څه منحصر نه دی، د الله تعالی علم خو د اسمان او ځمکې په ټولو شیانو باندې محیط دی، او د ځینو مصالحو او حکمتونو په بناء ټول واقعات د ده د علم سره سم په لوح محفوظ کې ثبت او محفوظ دي، او هم د انسانانو ټول اعمال د دوی په عملنامو کې لیکل شوي دي، چې له هغو سره سم به د قیامت په ورځ فیصله کیږي، او په دومره بې شمارو شیانو باندې په پوره ډول سره پوهېدل، او د هغو ټولو په ښه شان

سره ليکل، او د هغه سره مطابق د هر يوه فيصله صادرول؛ د دغو اجراء او انفاذ پاک الله ته هيڅ اشکال او سختي نه لري، او نه ده ته په دغو کارونو او نورو مشکلو چارو په کولو او تکميل کې (معاذ الله) څه تکليف او زحمت ورپيدا کيږي.

وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَمَا لَيْسَ لَهُم بِهِ عِلْمٌ ۗ وَمَا لِلظَّالِمِينَ مِن نَّصِيرٍ ﴿٧١﴾

او عبادت کوي (دغه کفّار) غير له الله د هغه شي چې نه دی نازل کړی (الله) په عبادت د هغه هيڅ سند، او د هغه شي چې نشته دوی ته په هغه باندې هيڅ علم دليل پوهه، او نشته ظالمانو ته هيڅ مرسته کوونکی (چې له عذابه يې خلاص کړي).

تفسير: دوی يوائې د خپلو پلرونو او نيکونو تقليد کې داسې کارونه کوي، چې هيڅ يو عقلي يا نقلي کوم برهان يا سند يا دليل پرې نه لري، (او نشته ظالمانو ته هيڅ مرسته کوونکی چې له عذابه يې خلاص کړي او) له ټولو څخه لوی ظلم او بې انصافي دا ده چې پاک الله سره کوم شريک ودرولی شي، نو داسې ظالمان او بې انصافان خلق دې ښه په ياد ولري، چې د دوی دغه شرکاء به د مصيبت په وخت کې هيڅ د دوی په ښه او کار ورنشي، او نه به په هغه وخت کې له دوی سره کومه مرسته وکړی شي.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ تَعْرِفُ فِي وُجُوهِ الَّذِينَ كَفَرُوا الْمُنكَرَ ۖ يَكَادُونَ يَسْطُونَ بِالَّذِينَ يَتْلُونَ عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا ۗ قُلْ أَفَأُنَبِّئُكُم بِشَرٍّ مِّن ذَٰلِكُمُ ۗ النَّارُ وَعَدَهَا اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿٧٢﴾

او کله چې ولوستل شي په دوی آيتونه (د قرآن) زمونږ په داسې حال کې چې صاف واضح ښکاره دي؛ نو پيژنې په مخونو د هغه کسانو کې چې کافران شوي دي (آثار د) انکار (له حق څخه چې بدشکلي او خفګان دی)، نژدې وي چې حمله وکړي (له ډېره قهره) په هغو کسانو چې لولي په دوی باندې آيتونه (د قرآن) زمونږ، ووايه (ای محمده ! دوی ته چې) آيا پس خبر کړم تاسې په ډېر بد له دې (قهره حملې) ستاسې (چې دغه) اور (د دوزخ) دی، وعده کړې ده د دې (اور) الله له هغو کسانو سره چې کافران شوي دي، او خامخا بد ځای د بېرته ورتلو دی (دا اور د دوزخ).

تفسير: يعني د عظيم الشأن قرآن آيتونه چې په توحيد او نورو صافو بيانونو مشتمل دي؛ له اوريدلو څخه د کفّارو او مشرکينو رنګونه تور او شنه واوړي، او له ډېر خفګان نه يې څېرې بدلې شي، چې له ډېر قهر او غضب څخه ليوني شي، او غواړي چې د قرآن په لوستونکو حمله وکړي، لکه چې په ځينو وختونو کې داسې هم کوي.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ ضُرِبَ مَثَلٌ فَاسْتَمِعُوا لَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ لَن يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ ۖ وَإِن يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَّا يَسْتَنقِذُوهُ مِنْهُ ۚ ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ ﴿٧٣﴾

ای خلقو ! بيان شوی دی تاسې ته يو مثال (غريب، عجيب حال) پس غوږ کېږدئ تاسې هغه ته (چې دا دی): بېشکه هغه معبودان چې تاسې عبادت کوئ (د هغو) غير له الله نه؛ له سره نشي پيدا کولی يو مچ هم، او که راټول شي (دا ټول معبودان ستاسې پيدا کولو د) هغه مچ ته (نو پيدا به يې

نه کړی شي)، او که چېرې وتښتوي له دوی څخه مچ یو شی؛ نو نشي خلاصولی دوی هغه شی له هغه مچ څخه، نو کمزوری دی دا طالب (چې د باطلو معبودانو عابد دی)، او دا مطلوب (هم چې باطل معبود یا مچ دی).

**تفسیر:** دا يې د توحید په مقابل کې د شرک د بدۍ او قباحت د ظاهرولو لپاره مثال بیان کړ، چې ښایي هغه په ډېر ښه فکر او غور سره واورئ، او ښه غور ورته کېږدئ، او ښه پرې وپوهېږئ !، ګوندې له داسې رکیک او ذلیل حرکت څخه مخ وګرځوئ او لاس ترې واخلئ !.

﴿إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ﴾ الآیة - یعنې مچ ډېر ادني او حقیر ساکنې (جاندار) دی، په هغو شیانو کې چې دومره یو قدرت او قوت نه وي چې که ټول سره یوه ځای شي؛ یو مچ هم نشي پیدا کولی، یا که دغه مچ د دوی د نذرونو او نیازونو څخه یو وړوکی شی (لکه د ګلانو او عطریاتو یا د شاتو یا د نورو کوم بخرکی ترې) وتښتوي؛ نو د دوی له لاسه نه کیږي، چې هغه ترې بېرته واخیستی شي، ښه نو د ځمکې او اسمانونو د خالق په ځای (نعوذ بالله) د الوهیت په تخت باندې د داسې عاجزو او ناتوانو معبودانو کېنول څومره حماقت او بې حیایي ده، رښتیا خبره خو همدا ده چې مچ هم کمزوری دی، او له مچ نه زیات کمزوري د دوی معبودان دي، او له معبودانو څخه زیات کمزوري د هغوی عبادت کوونکي دي، چې دوی داسې حقیر او کمزوری شی خپل معبود او حاجت تر سره کوونکی ګرځولی دی.

مَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٧٤﴾

نه دی پېژندلی (دغو کفّارو) او نه يې دی تعظیم کړی د الله په حق پېژندلو او تعظیم د ده سره، بېشکه الله خامخا ښه قوي زورور ډېر زبردست دی (په تنفیذ د احکامو خپلو کې).

**تفسیر:** که پوهیدی نو داسې سپین سترګي به يې ولې کوله؟ آیا د الله تعالی رفیع شأن او قدر او منزلت دومره دی چې داسې کمزوري شیان د هغه سیال او شریک وګرځولی شي (العیاذ بالله)، د الله تعالی د قوّت او عزّت په مقابل کې خو د هغه لویې لویې مقربې پرښتې او انبیاء علیهم السلام هم مجبور او ناتوان دي، چې اوس په لاندې متبرک آیت کې د هغوی ذکر راځي.

اللَّهُ يَصْطَفِي مِنَ الْمَلَائِكَةِ رُسُلًا وَمِنَ النَّاسِ ۚ

الله غوره کوي له پرښتو څخه استاځي (چې واسطه کیږي په منځ د الله او انبیاوو کې)، او له خلقو څخه (هم غوره کوي استاځي).

**تفسیر:** له ځینو پرښتو څخه د رسالت کار اخلي، مثلاً د جبرئیل علیه السلام او له ځینو انسانانو څخه چې پاک الله د دغه منصب لپاره انتخاب کړي؛ همدغه د رسالت کار اخلي، ښکاره ده چې د هغوی درجه د نورو خلقو څخه ډېره لوړه (اوچته) ده.

إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ﴿٧٥﴾

بېشکه الله ښه اورېدونکی دی (د ټولو اقوالو) ښه لیدونکی دی (د ټولو افعالو).

**تفسیر:** یعنې الله تعالی د دوی په ټولو خبرو خبر دی، د دوی د ماضي او مستقبل ټول احوال ویني، نو ځکه هغه حق لري چې د هر چا احوال او استعداد ته وګوري، او سم له هغه سره يې د رسالت په منصب فایز او بریالی کړي: ﴿اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ﴾ (۸ جزء د الأنعام سورت (۱۲۴) آیت (۱۵) رکوع).

يَعۡلَمُ مَا بَيۡنَ أَيۡدِيهِمۡ وَمَا خَلۡفَهُمۡۚ وَإِلَى ٱللَّهِ تُرۡجَعُ ٱلۡأُمُورُ ﴿٧٦﴾

پوهيږي (الله) په هغه څه چې وړاندې د دوی دي، او په هغه چې وروسته د دوی دي، او خاص د الله طرف ته بېرته ګرځولی کېږي ټول کارونه.

تفسیر: يعني خاص الله تعالى ته بېرته ګرځولی شي ټول کارونه، او هيڅوك د الله تعالى په کارونو کې د اعتراض حق نه لري، د الله تعالى حکم، تدبير، د انبياوو انتخاب او نور ټول کارونه ښه دي، او د ده په حکم او اراده سره کېږي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱرۡكَعُواْ وَٱسۡجُدُواْۤ وَٱعۡبُدُواْ رَبَّكُمۡ وَٱفۡعَلُواْ ٱلۡخَيۡرَ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ۩ ﴿٧٧﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو !) رکوع کوئ تاسې !او سجده کوئ تاسې ! (په لمانځه کې)، او عبادت کوئ تاسې ! د رب خپل (نه د بل)، او کوئ نېک کارونه (لکه صله رحمي او ښه اخلاق) لپاره د دې چې برى ومومئ (په نعمت او جنّت سره).

تفسیر: د شرك د غندنې او د مشركانو د سپکونې څخه وروسته مؤمنانو ته خطاب کوي، چې تاسې يواځې د خپل يوه الله تعالى په بندګۍ لګيا اوسئ !او د هغه په حضور کې د بندګۍ سرونه ښکته کړئ !او د عبوديت او عاجزۍ وچولی (تندی) مو هم هغه ته په ځمکه کېږدئ !او نور د ښېګڼې ټول کارونه هم خاص د الله تعالى لپاره کوئ، څو دنيوي او اخروي ښېګڼې او نېکۍ مو په برخه شي.

ځينې مفسرين د دې آيت د ركوع او سجدې له دغه تخصيص څخه د تلاوت سجده مرادوي.

وَجَٰهِدُواْ فِي ٱللَّهِ حَقَّ جِهَادِهِۦۚ هُوَ ٱجۡتَبَىٰكُمۡ وَمَا جَعَلَ عَلَيۡكُمۡ فِي ٱلدِّينِ مِنۡ حَرَجٖۚ مِّلَّةَ أَبِيكُمۡ إِبۡرَٰهِيمَۚ هُوَ سَمَّىٰكُمُ ٱلۡمُسۡلِمِينَ مِن قَبۡلُ وَفِي هَٰذَا لِيَكُونَ ٱلرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيۡكُمۡ وَتَكُونُواْ شُهَدَآءَ عَلَى ٱلنَّاسِۚ فَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱعۡتَصِمُواْ بِٱللَّهِ هُوَ مَوۡلَىٰكُمۡۖ فَنِعۡمَ ٱلۡمَوۡلَىٰ وَنِعۡمَ ٱلنَّصِيرُ ﴿٧٨﴾

او زيار (کوښښ) کوئ په (لاره د جهاد، طاعت، او رضاء د) الله په حق جهاد د هغه سره (چې ورته وړ، مستحق، او لايق دی)، دغه (الله) غوره کړي يئ تاسې، او نه يې دی ګرځولی (نه يې دی ايښی) په تاسې په دين کې هيڅ حرج (مشقّت او اشکال)، (متابعت وکړئ د) دين د پلار خپل چې ابراهيم دی، دغه (الله) ونومولئ تاسې مسلمانان پخوا (له دغه قرآن څخه په نورو اسماني کتابونو کې)، او په دغه (قرآن) کې (هم)، لپاره د دې چې شي رسول (ستاسې) شاهد په تاسې (د تبليغ خپل)، او چې شئ تاسې (ای مسلمانانو !) شاهدان په نورو خلقو (د تبليغ د نورو انبياوو)، نو قائموئ (سم اداء کوئ تاسې سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکوئ تاسې زکات، او ښه ټينګ ونيسئ تاسې (دين د) الله، دغه (الله) مالك دی ستاسې، پس ښه مالك دی (الله)، او ښه مرسته (مدد) کوونکی دی الله.

تفسیر: د خپل نفس د تهذيب او د دنيوي چارو د سمون لپاره داسې پوره زيار (کوښښ) کوئ، چې د دې لوی او اهمّ مقصود سره موافق وي، آخر د دنيوي مقاصدو د برې او کاميابۍ لپاره تاسې څومره تکليفونه او زحمتونه په ځان اخلئ، دا خو د دين او د آخرت د دائمي برې او کاميابۍ لاره ده، چې په هغې کې هر څومره زحمت او محنت ومومئ؛ بيا هم د انصاف له مخې کم دی.

**تنبیه:** د «مجاهده» په لفظ کې هر قسم کوښښونه، د ژبې وي، که د قلم، مالي وي که بدني؛ شامل دي، او هم د «جهاد» تمام اقسام، جهاد مع النّفس، جهاد مع الشیطان، جهاد مع الکفّار، جهاد مع البغاة، جهاد مع المبطلین؛ د هغه لاندې داخل دي.

﴿هُوَ اجْتَبٰىكُمْ﴾ یعنې له ټولو څخه اعلی او افضل رسول او له ټولو شرائعو څخه یې اکمل شریعت درکړ، او په تمامه دنیا کې د الله تعالی د پیغام رسولو لپاره یې تاسې غوره او منتخب کړئ ! او په ګردو امّتونو باندې یې تاسې ته فضیلت دروبانبه.

﴿وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّيْنِ مِنْ حَرَجٍ﴾ یعنې په دین کې یې هیڅ داسې یو اشکال نه دی پرېښی، چې د هغه کول سخت او مشکل وي، په احکامو کې یې د هر ډول رخصتونو او آسانیو لحاظ ساتلی دی، دا خو بېله خبره ده چې تاسې یو آسان کار په خپل ځان مشکل وګرځوئ.

﴿مِلَّةَ اَبِيْكُمْ اِبْرٰهِيْمَ﴾ متابعت وکړئ ! ای مؤمنانو د دین د پلار خپل چې ابراهیم علیه السلام دی، کله چې ابراهیم علیه السلام د محمد مصطفی صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلّم په اجدادو کې شامل دی؛ نو ځکه د ګرد امّت پلار شو، یا به دا مراد وي چې د عربو پلار دی، ځکه چې د قرآنکریم ړومبني مخاطبان هم دوی وو.

﴿هُوَ سَمّٰىكُمُ الْمُسْلِمِيْنَ﴾ دغه الله تعالی یا ابراهیم علیه السلام ونوموله تاسې مسلمانان، یعنې الله تعالی په پخوانیو کتابونو او په دې عظیم الشأن قرآن کې ستاسې نوم «مسلم» ایښی دی، چې معنی یې حکم منونکي، وفا خوښوونکي دي، یا ابراهیم علیه السلام له پخوا څخه ستاسې نوم د مسلمان ایښی دی، کله چې پخپله دعاء کې یې ویلي وو: ﴿وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً﴾ د (البقرة سورت (۱۵) رکوع)، او په قرآن کې هم ښایي د همده په غوښتنه دغه نوم په تاسې ایښود شوی دی، په هر حال ستاسې نوم «مسلم» دی، اګر که نور امتونه هم مسلمانان وو، مګر دغه لقب ستاسې لپاره غوره او ټاکل شوی دی؛ نو ښایي پرې فخر وکړئ.

﴿لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا﴾ یعنې تاسې یې د دې لپاره غوره کړئ چې تاسې نورو امّتونو ته ښوونه وکړئ، او رسول الله صلی الله علیه وسلم تاسې ته ښوونه وکړي، او دغه امّت چې له ټولو څخه وروسته راغلی دی، غرض یې دا دی چې دی د نورو امّتونو غلطۍ اصلاح کړي، او ګردو ته سمه صافه لاره وښیي، ګواکې هغه مجد او شرف چې د ده په برخه شوی دی؛ له همدې وجه دی چې دی د ګردې (ټولې) دنیا معلم (لار ښوونکي) وګرځي او په تبلیغي جهاد کې مصروف واوسي.

**تنبیه:** نورو مفسرانو (شهیداً) او (شهداء) د شاهد او ګواه په معنی اخیستی دی، کله چې د قیامت په ورځ کې نور امّتونه انکار وکړي، چې انبیاء الله علیهم السلام مونږ ته تبلیغ نه دی کړی، او له انبیاوو څخه شاهدان وغوښتل شي؛ نو دوی به محمّدي أمّت د شاهد په ډول ور وړاندې کړي، او دغه امّت به داسې شاهدي اداء کړي: «بېشکه چې دغو انبیاوو علیهم السلام د دعوت او تبلیغ وظائف انجام کړي دي، او د الله تعالی حجّت یې قائم کړی دی»، کله چې له دوی ځنې پوښتنه وشي چې دا خبره تاسې ته څرنګه معلومه شوه؟ نو ځواب به ورکړي چې «دغه اطلاع مونږ ته څمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم راکړې ده، چې د ده په صداقت باندې د الله تعالی محفوظ کتاب قرآنکریم شاهد دی»، ګواکې دغه فضل او شرف یې ځکه درکړی دی، چې تاسې په یوې عظیم الشأني دعوی کې د یوه معزّز شاهد او ګواه په شان درېدونکي یئ، لیکن ستاسې د دغې شاهدۍ اوربدل او اهمیت هم ستاسې د معظّم رسول په واسطې سره دي، چې هغه به ستاسې تزکیه کوي.

"تمت سورة الحجّ بفضله ومنّه، فله الحمدُ وعلي نبيّه الصلاةُ والتسليم ".

# سُورَةُ المُؤْمِنُون

«د (المؤمنون) سورت مکّي دی، (۱۱۸) آیتونه (۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۳) او په نزول کې (۷۴) سورت دی، وروسته د (الأنبیاء) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱﴾ الَّذِیْنَ هُمْ فِیْ صَلَاتِهِمْ خٰشِعُوْنَ ﴿۲﴾

په تحقیق بریالي (بهرمن ـ کامیاب) شوي دي مؤمنان. هغه (مؤمنان) چې دوی په لمونځونو خپلو کې عاجزي کوونکي ویریدونکي دي (له الله نه).

تفسیر: د «خشوع» معنی دا ده چې د بل چا په مخ کې په خوف او هیبت سره ساکن او سرښکته کړي، لکه چې ابن عباس رضي الله عنهما د ﴿خٰشِعُوْنَ﴾ تفسیر په «خائفون ساکنون» سره کړی دی، او د ﴿تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً فَاِذَاۤ اَنْزَلْنَا عَلَیْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ﴾ آیت هم دلالت کوي چې په «خشوع» کې یو قسم سکون او تذلّل معتبر دی.

په قرآنکریم کې «خشوع» د «وجوه ـ أبصار ـ أصوات ـ اونورو» صفت ښودلی شوی دی، او په دغه آیت کریمه د ﴿اَلَمْ یَاْنِ لِلَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَنْ تَخْشَعَ قُلُوْبُهُمْ﴾ کې د قلب صفت ښوولی شوی دی، معلومیږي چې اصلاً «خشوع» د زړه کار دی، او د نورو بدني أعضاوو خشوع د زړه د خشوع تابع ده، کله چې په لمانځه کې قلب خاشع، خائف، ساکن او ښکته شي؛ نو خیالات هم د دې خوا او د هغې خوا د مشغولتیا او ګرځېدو څخه فارغ او په هم هغه یو مقصود باندې ټینګ ودریږي، نو بیا د خوف، هیبت، سکون، خضوع او خشوع آثار پر بدن هم ظاهریږي، مثلاً د اوږو، سر، او ستر ګو ښکته غورځول، په ادب سره دربېدل، دې خوا او هغې خوا ته نه کتل، له خپلو کالیو (جامو) او ویښتو او نورو شیانو سره لوبې نه کول، د ګوتو نه ترکول، او په دې قسم د «خشوع» د لوازمو څخه نور افعال او احوال هم شته.

په احادیثو کې د أبو بکر الصدّیق رضي الله تعالی عنه او عبد الله بن الزُّبیر رضي الله تعالی عنه څخه منقول دي، چې دوی به په لمانځه کې داسې ساکن او آرام وو، لکه یو بې ساه لرګی، او ویل کېده چې دغه د لمانځه خشوع ده.

وَالَّذِیْنَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُوْنَ ﴿۳﴾

او هغه (کسان هم بهرمن شول) چې دوی له ناکارو (بدو اقوالو بدو افعالو) څخه مخ ګرځوونکي دي.

تفسیر: یعنې په فضولو او بېکارو مشاغلو کې خپل وخت نه ضایع کوي، که کوم بل سړی لغو او چټي (بېکاره) او مهملې خبرې یا افعال کوي؛ نو د هغو له اورېدلو او کتلو څخه مخ اړوي، او ده ته د عبودیت د وظائفو له ایفاء کولو څخه دومره وخت او فرصت نه وي میسّر چې په دغسې بې فائدې جګړو او فضولو خبرو کې ځان اخته کړي.

وَالَّذِیْنَ هُمْ لِلزَّکٰوةِ فٰعِلُوْنَ ﴿۴﴾

او هغه (کسان هم بهرمن شول) چې دوی (تل) د زکات اداء کوونکي دي (چې د مالي فعلي او قولي عباداتو جامع دی).

**تفسیر:** یعني دغه د دوی عادت دی چې تل زکات اداء کوي، او داسې نه دي چې کله یې ورکوي او کله یې نه ورکوي، غالبًا له همدې جهته د ﴿وَيُؤْتُونَ الزَّكَوٰةَ﴾ په ځای یې د ﴿لِلزَّكَوٰةِ فَٰعِلُونَ﴾ ترکیب اختیار فرمایلی دی، ګواکې دا یې ښودلي دي چې د زکات اداء د دوی مستمر کار دی، ځینو مفسرینو دلته زکات د طهارت او پاکیزګۍ یا د نفس د تزکیې په معنی اخیستی دی، ګواکې دغه آیت یې د ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ﴾ او د ﴿قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّىٰهَا﴾ په شان ګرځولی دی، که دغسې مراد وي؛ نو د هغه مفهوم دې عام کېښود شي، چې په هغه کې د بدن، د زړه، او د مال پاک ساتل ګرد داخل شي، زکات او صدقات هم یو قسم مالي تطهیر دی: ﴿خُذْ مِنْ أَمْوَٰلِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا﴾ (۱۱ جزء د التوبة سورت (۱۳) رکوع (۱۰۳) آیت)، د داسې ویلو چې دغه آیت مکي دی، او په مکې معظمې کې لا زکات نه وو فرض شوی، ابن کثیر رحمه الله جواب داسې ورکړی دی چې: د زکات اصلي مشروعیت په مکه کې شوی وو، هو ! د هغه د مقادیرو او نصابونو او نورو تشخیص وروسته د مدینې منورې له راتګه وشو، والله أعلم.

وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَٰفِظُونَ ۝٥ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزْوَٰجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ ۝٦ فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْعَادُونَ ۝٧

او هغه (کسان هم بهرمن شول) چې دوی فروجو (ځای د شهواتو) خپلو لره ساتونکي دي (له زنا څخه). مګر پر ښځو خپلو یا پر هغو وینځو چې مالکان شوي وي د هغو ښې لاسونه د دوی، پس بېشکه دوی نه دي ملامت کړی شوي (په ورتلو سره ښځو او وینځو خپلو ته). پس هر څوک چې وغواړي (دفع د شهوت) غیر له دغو (ښځو او وینځو خپلو) نه پس دغه کسان هم دوی دي تجاوز کوونکي (له حده).

**تفسیر:** یعني له خپلې منکوحې ښځې یا وینځې څخه ماسوا بله کومه لاره د شهوت د قضاء لپاره ولټوي؛ نو دی د حلالو له حدودو وتونکی دی، په دې کې زنا، لواطت، او استمناء بالید (د لاس په وسیله د ځان نه مني ویستل) او نور ټول غیر مشروعه صورتونه راغلل، بلکه ځینو مفسرینو د «متعه» پر حُرمت هم پر همدغه آیت استدلال کړی دی.

وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَٰعُونَ ۝٨

او هغه (کسان هم بهرمن شول) چې دوی امانتونو خپلو لره او عهدونو خپلو ته (که د خالق که د مخلوق) رعایت کوونکي دي (چې بېوفایي او خیانت په کې نه کوي).

**تفسیر:** یعني د امانت او قول او اقرار حفاظت کوي، خیانت او بد عهدي نه کوي، نه د الله تعالی په معاملاتو کې، او نه د بندګانو په چارو کې.

وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَٰتِهِمْ يُحَافِظُونَ ۝٩

او هغه (کسان هم بهرمن شول) چې دوی (همېشه) پر لمونځونو خپلو ساتنه کوي (چې تل یې سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو).

**تفسیر:** تر دې ځایه پورې یې د مفلحینو مؤمنینو شپږ صفات او خصال بیان وفرمایل:

(۱): سره له خضوعه او خشوعه د لمونځونو اداء کول.

(۲): د باطلو، لغوو، او بېباکو خبرو او ناکارو کارونو څخه ځان بېل ساتل.

(۳): د زکات یعني مالي حقوق اداء کول، یا خپل نفس او مال پاک ساتل.

(۴): نفساني شهوات پخپل واك او اختيار كې ساتل.

(۵): د عهد او امانت حفاظت يعنې د ګردو (ټولو) معاملاتو درست او منظم ساتل.

(۶): او په آخر كې يې بيا د لمونځونو د قيام تأكيد وفرمايه.

له دې نه ظاهرېږي چې د لمانځه حق د الله تعالى په نزد ډېر لوړ او اعلى څيز دى، چې دلته يې خپله خبره پر هم هغه باندې شروع او پر هم هغه باندې يې ختمه كړه.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ ﴿١٠﴾ الَّذِينَ يَرِثُونَ الْفِرْدَوْسَ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿١١﴾

همدغه (مؤمنان موصوف په دغو شپږو واړو صفاتو) هم دوى دي وارثان، هغه (وارثان) چې مېراث به اخلي (وېړيا اعلى جنت د) فردوس (د دوزخيانو برخه به هم اخلي)، دوى په دغه (جنت الفردوس) كې تل پاتې كېدونكي دي.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ مِن سُلَالَةٍ مِّن طِينٍ ﴿١٢﴾

او قسم دى خامخا په تحقيق پيدا كړى دى مونږ انسان (آدم) له خالصې (صافې له خيري ويستلې شوې) خټې نه.

تفسير: ځكه چې ځمونږ د ټولو پلار آدم عليه السلام له منتخبې او غوره كړى شوې خاورې څخه پيدا كړى شوى دى، او برسېره پر هغه تمام بني آدمان له نطفې څخه پيدا كيږي، چې دغه نطفه هم له ځمكې څخه بالوسيله متشكله كيږي، چې د منتخبو اوغوره كړيو شيانو خواړه او د اغـذيه وو عصاره او خلاصه ده.

ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَّكِينٍ ﴿١٣﴾

بيا وګرځاوه كېښود مونږ (اولاده د) دغه (آدم) نطفه (تړلى څاڅكى د مني) په يو قرارګاه محكم (رحم كې).

تفسير: يعنې د مور په رحم كې چې له هغه ځايه بل هيڅېرې نشي خوځېدلى.

ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ ﴿١٤﴾

بيا وګرځوله مونږ دا نطفه ټوټه د وينو (كلكه سرېښناكه)، بيا وګرځوله مونږ دغه ټوټه د وينو يوه وړه ټوټه د غوښو، بيا وګرځوله مونږ دا پوټى د غوښو هډوكى، بيا ور واغوستله مونږ دې هډوكو ته (پس له پيدا كولو د رګونو او د پلو او نورو) غوښه، بيا مو (ژوند) پيدا كړ دى په پيدايښت بل سره (په نوي صورت)، پس ډېر ښه بركت اچونكى دي الله تعالى لوړ چې ډېر ښه پيدا كوونكى (صورت تړونكى) دى، (له نورو ټولو پيدا كوونكيو، صورت تړونكيو څخه خلقًا).

تفسير: يعنې د غوښې يوه برخه كلكوي، او ترې هډوكي جوړوي، او د هډوكو پر قفس (ډانچه) او سلسله رګونه، پلې، تارونه او د بدن نور څيزونه چې ورته حاجت وي د پيدا كولو څخه وروسته غوښې او پوستكي زرغونوي، پخوا له دې په (۱۷ جزء د الحج سورت په (۱) ركوع) كې د انسان د تخليق هم دغه كيفيت بيان كړى شوى دى.

﴿ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ﴾ ـ «بیا مو ژوندی پیدا کړ دی په پیدایښت بل سره (په نوي صورت)»، یعنې د روح د پوکولو په سبب یې له دې نه یو ژوندی ویښ انسان جوړ کړ، چې پر دغه ذي روح انسان وروسته له دې نه د طفولیت (ماشوموالي)، شباب (ځوانی)، کهولت (پوخ عمر)، او شیخوخت (بوډاوالي) ډېر احوال او ادوار او مراحل تیریږي، یا دا چې اول جماد وو، اوس یې حیوان کړ، پخوا ړوند، کوڼ، ګونګ وو، اوس یې لیدونکی، اورېدونکی، ویونکی کړ.

فائده: سره له دې چې الله تعالی د تمامو موجوداتو خالق دی، یعنې ځمکې، اسمانونه، عرش، کرسي، لوح، قلم، جن، ملائک، لمر، سپوږمۍ، ستوري، جبال، بحار، اشجار، انهار او داسې نور ډېر أشیاء یې پیدا کړي دي، مګر په هیڅ یوه باندې یې داسې ثناء په ذات پاک خپل ونه ویله لکه چې په پیدا کولو د انسان، له دې نه دا خبره معلومه شوه چې انسان ورته ډېر معزّز او مکرّم دی، ځکه یې فرمایلي دي: ﴿وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِي آدَمَ﴾ الآیة ـ خامخا په تحقیق کرامت عزت ورکړی دی مونږ ځامنو د آدم ته.

﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ ۝١٥﴾

بیا بېشکه تاسې پس له دې ژوندي کولو د تاسې (په دغه پاس طریقه سره) خامخا مړه کیدونکي یئ.

تفسیر: یعنې ستاسې وجود ذاتي او خانه زاد نه دی، بلکه مستعار او د الله تعالی عطاء او بخشش دی، لکه چې د موت په لېږلو سره د هغه ګردې نقشې ورانوي، او تاسې په هغه وخت کې د مرګ له زوررورو او قوي منګولو څخه خپل ژوندون نشئ ساتلی، نو معلوم شو چې بل کوم قاهر قوت او قدرت ستاسې پر سرونو شته؛ چې ستاسې د وجود ژوندون او بقاء زمام یې ټینګ په خپل قدرت کې نیولی دی، او هر وخت چې اراده او مشیت وفرمایي؛ هغه پرېږدي او خوشې کوي یې، یا یې بېرته راکاږي، فسبحان الله أحسن الخالقین.

﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ ۝١٦﴾

بیا بېشکه تاسې په ورځې د قیامت کې بیا ژوندي راپاڅولی شئ (له قبورو لپاره د جزا).

تفسیر: هغه لوی ذات چې اول ځلي یې پیدا کړی وو؛ هم هغه دویم ځلي هم بیا ژوندی راپاڅوي، لومړی د وجود مستور قوتونه او د اعمالو نتائج پخپل ډېر کامل صورت سره ظاهر او دغه په اثبات رسوي، چې دومره یوه لویه کارخانه مې خوشې چټي (بېکاره)، بې نتیجې، عبث او د لوبو او ساعت تېرې لپاره نه وه جوړه کړې.

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعَ طَرَائِقَ﴾

او خامخا په تحقیق پیدا کړي دي مونږ ستاسو د سر د پاسه اووه لارې (۷ اسمانونه).

تفسیر: د ﴿طَرَائِقَ﴾ معنی ځینو مفسّرینو او لغوینو په نزد «طبقات» ده، یعنې د اسمان اوه طبقې مو لاندې باندې جوړې کړي دي، فهذا کما قال: ﴿كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا﴾ (۲۹ جزء د نوح سورت (۱۵) آیت (۱) رکوع)، او ځینې د ﴿طَرَائِقَ﴾ معنی لارې اخلي، یعنې اوه لارې مو جوړې کړي دي، چې د پرښتو د تللو او راتللو معبرې دي.

﴿وَمَا كُنَّا عَنِ الْخَلْقِ غَافِلِينَ ۝١٧﴾

او نه یو مونږ له (ټولو احوالاتو د) مخلوقاتو (خپلو څخه) غافله بې خبره.

تفسير: يعني هر ځيز مو په پوره انتظام او محكموالي او خبرداري سره جوړ كړي دي، او د ده د حفاظت او بقاء له طريقو څخه مونږ پوره باخبره يو، په سماويه وو اجرامو او سفليه وو مخلوقاتو كې يو داسې ځيز هم نشته دی؛ چې ځمونږ د علم او قدرت له احاطې څخه خارج وي، كه نه دغه ټول نظم ترتيب او تنسيق سره ګډوډ او خراب تراب كيږي: ﴿يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا﴾ (۲۷ جزء د الحديد سورت (۴) آيت (۱) ركوع).

وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً بِقَدَرٍ فَأَسْكَنَّاهُ فِي الْأَرْضِ ۖ وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ ﴿١٨﴾

او نازلې كړې دي مونږ له (طرفه د) اسمانه اوبه په اندازه، نو ومو درولې دغه (اوبه) په ځمكه كې،
او بېشكه مونږ په بيولو وركولو د دې (اوبو) خامخا قادر يو (لكه چې قادر يو په نازلولو يې هم).

تفسير: يعني راښكته كړي دي مونږ له لوري د اسمانه اوبه په هغه ميچ چې د مخلوقاتو ښېګڼه په كې وينو، نه دغومره زياتې چې بې وقته او بې موقعه تباه او توی لاړې شي، او نه دومره لږې مو دركړي دي چې ستاسې ضرورياتو ته كفايت ونه كړي.

﴿فَأَسْكَنَّاهُ﴾ الآية ـ يعني ځمكه د باران اوبه پخپل منځ كې ځيبښي، او جذب كوي يې، چې بيا مونږ دغه اوبه ترې د كاريزو كوهيو او برمو او نورو په وسيله راوباسو، او ترې استفاده كوو، يا پخپله دغه اوبه د چينو او زيمونو ځمكو په وسيله بهيږي (يا يې دروو د ځمكې په سر هم په تالابونو ډنډونو او نورو ظرفونو كې).

﴿وَإِنَّا عَلَىٰ ذَهَابٍ بِهِ لَقَادِرُونَ﴾ الآية ـ يعني كه باران دربانديې ونه وروو؛ نو څوك به يې دربانديې اوروي؟ او كه يې در باندې اوروو، خو د شرب ارواء (خړبولو) او د استفادې وسائل او وسائط در څخه واخلو، او تاسې ته داسې قوّت او قدرت در نه كړو، چې ترې ګټور (فائده مند) شئ (مثلاً دومره يې ژورې بوځو، چې تاسو يې ونه شئ ايستلی، يا يې ژر تر ژره وچې او بيا يې په هوا كې ګډې كړو، يا يې تروې او ځُوسا كړو، دغه كارونه او نورې ټولې چارې ځمونږ له قدرته پوره دي، نو ستاسې له لاسونو څخه څه پوره دي، او څه به كولی شئ؟.

فَأَنْشَأْنَا لَكُمْ بِهِ جَنَّاتٍ مِنْ نَخِيلٍ وَأَعْنَابٍ لَكُمْ فِيهَا فَوَاكِهُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿١٩﴾

پس پيدا كړي دي مونږ تاسې ته په دې (اوبو) سره باغونه رنګارنګ له خرماګانو او (له) انګورو
چې شته تاسې ته په دې (باغونو) كې مېوې ډېرې، او له دغو (باغونو) څخه خورئ تاسې (مېوې).

تفسير: يعني په هغو د پسرلي او بهار د ليدلو څخه خوشالېږئ، او د هغو د حاصلاتو څخه ځينو د تفكّه په ډول او ځينې د غـذاء په صورت استعمالوئ.

وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُورِ سَيْنَاءَ تَنْبُتُ بِالدُّهْنِ وَصِبْغٍ لِلْآكِلِينَ ﴿٢٠﴾

او (بل پيدا مو كړه هغه) ونه چې وځي له (غره د) طور سينا څخه چې زرغونيږي له غوړو سره او
له انګولي (كتغ) سره لپاره د خوړونكيو.

تفسير: يعني د خونې (زيتونې) ونه چې ترې تېل ووځي، چې د منبلو او نورو په مصرف رسيږي، او ډېر زيات خلق يې د كتغ (انګولي) په شان استعمالوي، د ښونې ذكر يې په خصوصيت سره وفرمايه، ځكه چې د هغه فوائد زيات دي، او د يوه مخصوص فضل او شرف حيثيت لري، ځكه د «التين» په سورت كې پرې قسم هم ياد شوی دی، د طور غره په لوري نسبت كول هم د همدغې (خونې) زيتون د فضيلت او بركت ښكارولو لپاره دی، ځكه چې په هغه وخت كې به هلته د دغې خونې ونې ډېرې زياتې وې.

وَإِنَّ لَكُمْ فِي الْأَنْعَامِ لَعِبْرَةً نُّسْقِيكُم مِّمَّا فِي بُطُونِهَا وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ كَثِيرَةٌ وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿۲۱﴾

او بېشکه چې تاسې ته په څارویو کې خامخا عبرت دی، چې څښوو مونږ تاسې ته له هغو پیو نه چې په ګېډو د دوی کې دي، او شته تاسې ته په دغو (څاروو کې) منافع (ګټې فائدې) ډېرې، او له دوی (د ځینو اجزاوو) څخه خورئ تاسې (شودې غوښې اونور).

تفسیر: یعنې د حیواناتو شودې مونږ په خپل قدرت سره پر تاسې څښوو، او ډېرې زیاتې فائدې مو د تاسې لپاره د دغو حیواناتو په وجود کې ایښې دي، تر دې چې د ځینو حیواناتو د غوښو خوراک مو هم پر تاسې حلال کړی دی.

وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُونَ ﴿۲۲﴾

او پر دغو (څاروو) او پر بېړیو باندې بارولی شئ تاسې (په بر او بحر کې).

تفسیر: یعنې په وچه کې د حیواناتو (او نورو نقلیه وو وسائلو) په وسیله او په اوبو کې د بېړیو کښتیو (او جهازونو او نورو نقلیه وو وسائطو) په واسطه (او همداسې په هوا او نورو کې) نقل او حرکت کوئ، او له یوه ځایه بل لري ځای ته درومئ ! او ډېر درانه درانه شیان او سامان مو پرې باوروئ.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿۲۳﴾ فَقَالَ
الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَنزَلَ
مَلَائِكَةً مَّا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ﴿۲۴﴾

او خامخا په تحقیق لېږلی وو مونږ نوح خپل قوم ته، نو وویل (نوح): ای قومه څما ! عبادت کوئ تاسې (یواځې) د الله، نشته تاسې ته بل هیڅ معبود برحق غیر له دغه (الله)، آیا پس نه ویرېږئ تاسې (له عذابه د الله)؟ پس وویل هغو مشرانو چې کافران شوي وو له قومه د دغه (نوح خپلو اتباعو ته) چې: نه دی دا نوح مګر یو انسان دی په شان ستاسې، اراده لري د دې خبرې چې مشر شي پر تاسې باندې، او که اراده فرمایلې وی الله (د لېږلو د رسول انسانانو ته نو) خامخا لېږلي به یې وې پرښتې (نه انسانان)، نه دی اورېدلی مونږ دا (چې رسول بني آدم وي، یا توحید) په هغو پلرونو څمونږ کې چې پخوا وو.

تفسیر: یعنې په ده کې څه فرق شته، چې دی رسول شي او تاسې نه شئ؟، دی غواړي چې مشرتوب ځان ته حاصل کړي، نو ځکه دغه پلمه (تدبیر) او چل یې جوړ کړی دی، که نه که الله تعالی رسول لېږه؛ نو بل سړی پرې درېدلی وو چې همدا یې رالېږلی دی، او پرښته به یې نه وی رالېږلې، مونږ داسې عجیبه خبره له سره نه ده اورېدلې، چې یو څمونږ په شان سړی او معمولي انسان د الله تعالی رسول شي، او نورو ټولو معبودانو ته بد ووایي، او له منځه یې ورک کړي، او داسې دعوت او بلنه وکړي چې تاسې یواځې د احد او واحد الله تعالی عبادت وکړئ ! او بل هیڅوک مه منئ !.

إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ بِهِ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوا بِهِ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿۲۵﴾

نه دی (دا نوح) مګر یو داسې سړی دی چې په ده پورې نښتی دی لېونتوب سودا، پس انتظار کوئ تاسې ده ته تر یوه وخته پورې (چې جوړ شي یا مړ شي).

تفسیر: دغه د نوح علیه السلام د زماني د کفّارو وینا ده: معلومېږي چې د دې غریب دماغ خراب او فکر یې له کاره وتلی دی، که نه د ټول قوم په خلاف او خپلو پلرونو او نیکونو له اصوله مخالف داسې خبرې به یې ولې له خولې ایستلې؟

چې هيڅوک پرې يقين او باور نشي کولی، آيا که دا کار ښکاره لېونتوب نه دی نو څه دی؟ ښه خو دا ده چې تاسې څو ورځې صبر وکړئ ! او انتظار وکړئ ! ګوندې څه مدّت وروسته دی په سد او په هوش راشي، او د جنون او د سودا د دغې دورې څخه افاقه ومومي او جوړ شي، يا دی پخپلو همدغو ويلو ويلو کې مړ شي، او سا يې وخيژي، او دغه قصه پای ته ورسيږي (العياذ بالله).

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿۲۶﴾

وويل (نوح) ای رب څما ! مدد وکړه له ما سره په سبب د دې چې تکذيب يې وکړ څما.

تفسير: يعنې کله چې د نوح عليه السلام ټول زيار (محنت) او کوښښ بېکاره ثابت شو، او د نهه نيمو سوو کلونو ټول زيار او زحمت يې ورته بې ثمره او بې نتيجې څرګند شو، او موفّق نه شو چې دغه کفّار د ضلالت له لارې څخه چپ او د هدايت پر سمه لاره يې ور روان کړي؛ نو د الله تعالی په دربار کې يې عرض او فرياد وکړ چې: يا الله ! اوس د دغو اشقياوو په مقابل کې څما امداد وفرمايه، څکه چې ظاهراً دغه خلق څما د تکذيب څخه مخ ګرځوونکي نه دي، او د نورو خپلو راتلونکو نسلونو او اولادونو افکار او عقائد هم خرابوونکي دي.

فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا فَإِذَا جَاءَ أَمْرُنَا وَفَارَ التَّنُّورُ فَاسْلُكْ فِيهَا مِنْ كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ مِنْهُمْ وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا إِنَّهُمْ مُغْرَقُونَ ﴿۲۷﴾

پس وحي وکړه مونږ دغه (نوح) ته؛ داسې چې اوس جوړه کړه يوه بېړۍ په ليدلو (د سترګو او نظر لاندې) څمونږ، او په وحي (امر او ښودنې) څمونږ، پس کله چې راغی امر (حکم) څمونږ (پر نزول د عذاب سره)، او راوخوټېده (په اوبو) تنور؛ پس ورننباسه (سواره کړه) په دې بېړۍ کې له هره قسمه جوړه جوړه، دوه دوه (نر او ښځه)، او اهل (بيت) خپل (يا مؤمنان)، مګر مه ننه باسه هغه څوک چې ړومبی شوې ده په ده خبره (د عذاب) له دوی نه، او مه کوه خبرې له ما سره په باب د هغو کسانو چې ظلم يې کړی دی (په نفسونو خپلو باندې) بېشکه په دوی باندې حکم کړی شوی د غرقېدلو.

تفسير: يعنې کفّار اګر که ستا له کورنۍ څخه هم وي؛ له خپله څانه سره يې مه سوروه ! څکه چې د الله تعالی له درباره د عذاب قطعي حکم صادر شوی دی، او د دغې فيصلې اجراء او انفاذ يو حتمي او ضروري کار دی، اوس له ظالمانو څخه د هيڅ يوه د نجات او خلاصي لپاره هيڅ يوه سعي او کوښښ مه کوه !.

فَإِذَا اسْتَوَيْتَ أَنْتَ وَمَنْ مَعَكَ عَلَى الْفُلْكِ فَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي نَجَّانَا مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿۲۸﴾

نو کله چې برابر شوې وختلې (ای نوحه) ته او هغه (مؤمنان) چې له تا سره دي پر بېړۍ باندې؛ نو ووايه چې: ټول حمد ثناء ده خاص هغه الله ته چې خلاص يې کړو مونږ له ظالم قومه (مشرکانو) څخه.

تفسير: يعنې الله تعالی مونږ له دوی څخې بېل کړو، او له عذاب څخه يې مأمون او مصئون وساتلو.

وَقُلْ رَبِّ أَنْزِلْنِي مُنْزَلًا مُبَارَكًا وَأَنْتَ خَيْرُ الْمُنْزِلِينَ ﴿۲۹﴾

ووايه (ای نوحه په وخت د کوزېدو د تا له بېړۍ نه): ای ربه څما ! کوز کړه ما په يو داسې ځای کې چې مبارک برکتناک وي حال دا چې ته خير (ډېر غوره) له ټولو کوزونکيو څخه يې.

تفسیر: یعنې په بېړۍ کې ښه د هوسایۍ (آسانۍ) او آرام ځای راکړه ! او په کوم ځای کې چې مو له بېړۍ څخه ښکته کوې؛ هلته هم څه ربړ او تکلیف راپېښ نشي !، او په هر ډول او په هر ځای کې دې ستا برکت او رحمت ځما له حاله سره مل وي !.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ وَإِن كُنَّا لَمُبْتَلِينَ ﴿٣٠﴾

بېشکه دغه (قصه د نوح) کې خامخا دلائل (د عبرت او قدرت ځمونږ) دي، او بېشکه یو مونږ خامخا ازمويښت کوونکي (د بندګانو).

تفسیر: چې کوم یو د دغو داوړېدلو څخه عبرت او نصیحت حاصلوي؟ او کوم یو یې نه حاصلوي: ﴿وَلَقَد تَّرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ﴾ (د القمر سورت (۱) رکوع، (۱۵) آیت، (۲۷) جزء).

ثُمَّ أَنشَأْنَا مِن بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ﴿٣١﴾ فَأَرْسَلْنَا فِيهِمْ رَسُولًا مِّنْهُمْ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٣٢﴾ وَقَالَ الْمَلَأُ مِن قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِلِقَاءِ الْآخِرَةِ وَأَتْرَفْنَاهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ﴿٣٣﴾

بیا پیدا کړ مونږ پس له (هلاکه د) قومه (د نوح) یو اهل د زماني نور (عادیان یا ثمودیان)، پس ولېږه مونږ په هغو کې یو رسول (هود یا صالح) له دوی څخه، (وویل مونږ په ژبه د هغه رسول دوی ته داسې) چې عبادت کوئ تاسې (یواځې) د الله، نشته تاسې ته بل هیڅ بر حق معبود بې له الله، آیا پس نه ویرېږئ تاسې (له عذابه د الله). او وویل مشرانو له قومه د دغه (نبي) څخه هغه کسان چې کافران شوي وو، او نسبت د دروغو یې کړی وو ملاقات د آخرت ته، او نعمتونه ورکړي وو مونږ دوی ته په دغه ژوندون لږ خسیس کې: نه دی دا (نبي) مګر یو بشر سړی دی په مثل د تاسې چې خوري له هغه (څیزه) چې خورئ یې تاسې له هغه نه، او څښي له هغه څیز چې څښئ یې تاسې له هغه نه.

تفسیر: یعنې عادیان یا ثمودیان پر دې خبرې باندې نه وو معتقد چې وروسته له مرګه به یوه ورځ د پاک الله سره مخامخ کېدونکي یو، او داسې به یې ګڼل چې فقط همدغه د دنیا ژوندون او د هغې عیش او آرام ځمونږ په برخه کې دی، او پرته د معاش د معاد هیڅ فکر به له هغوی سره نه وو، نو څکه د خپلو رسولانو د ارشاد په مقابل کې به یې داسې چټي خبرې کوې چې دا رسول هم ځمونږ په شان سړی دی هغه څه خوري چې مونږ یې خورو او هغه څه څکي چې مونږ یې څکو ظاهر کې په ده کې هیڅ یو داسې امتیاز او خبره نشته چې تاسو یې نه لرئ.

وَلَئِنْ أَطَعْتُم بَشَرًا مِّثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا لَّخَاسِرُونَ ﴿٣٤﴾

او (قسم دی) خامخا که اطاعت وکړ تاسې د یوه انسان په شان خپل؛ بېشکه چې تاسې په هغه وخت کې خامخا له زیانکارانو څخه یئ.

تفسیر: یعنې له دې نه به لویه خرابي او ذلت څه وي چې د خپل ځان په شان د یوه بل معمولي انسان سړي تابع، خادم او مطیع شئ، او خامخا هغه خپل متبوع، مخدوم، او مطاع وګرځوئ؟.

أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ وَكُنتُمْ تُرَابًا وَعِظَامًا أَنَّكُم مُّخْرَجُونَ ﴿٣٥﴾ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ﴿٣٦﴾

آیا وعده کوي له تاسې سره (او ویروي مو دغه هود یا صالح په دې) چې بېشکه تاسې کله چې مړه شئ او شئ خاورې او هډوکي؛ نو بېشکه چې تاسې به را ایستل کېږئ (له ځمکې په بعث سره). ډېر لرې دی ډېر لرې دی (چېرې کېدی شي) هغه څیز چې تاسې سره یې وعده کولی شي.

تفسیر: دغه هم د کفّارو وینا ده، یعني څومره له عقل څخه بعیده خبره وایي، چې د وراسته هډوکي هغه بخرکي چې له خاورو سره بیخي ګډوډ شوي دي؛ بیا له قبرونو څخه د انسانانو په شکل ژوندي راپاڅولی کیږي، نو ښه تاسې (ای کفارو !) خپله فکر وکړئ چې په داسې چټي (بېکاره) او مهملو خبرو باندې څوک باور کولی شي؟ چې له عقله او صحّت څخه لرې وي؟.

إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿۳۷﴾

نه دی دا ژوندون مګر همدا ژوندون ځمونږ د دنیا، چې مرو او ژوندي کېږو، او نه یو مونږ بیا راپاڅولي شوي وروسته له مرګه (له قبرونو څخه حساب او کتاب ته).

تفسیر: یعني (دغه کفّار وایي) چېرې دی آخرت او چېرې دی حساب او کتاب؟ په څه چې مونږ پوهېږو خو هغه هم دغه د دنیا موجوده سلسله ده، چې مونږ یې ګورو، او هغه همدا یو ژوندي کېدل او یو مړه کېدل دي چې د ګردو تر سترګو لاندې جریان لري، یو څېږېږی (پیدا کیږي) او بل مري، او زیات له دې نه بل هیڅ شی نشته.

إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا وَمَا نَحْنُ لَهُ بِمُؤْمِنِينَ ﴿۳۸﴾

نه دی دغه (هود یا صالح) مګر یو سړی چې تړلي یې دي پر الله دروغ، او نه یو مونږ ده ته ایمان راوړونکي.

تفسیر: یعني کفّار وایي: د دغه سړي دغه وینا چې زه د الله نبي یم، او الله تعالی مړي بیا له سره ژوندي کوي، ثواب او عقاب، جزاء او سزا ورکوي؛ دغه دواړه دعاوی داسې دي چې هغه مونږ له سره نه شو منلی، نو خامخا داسې جګړې نښلولو او د سر درد پیدا کولو ته څه حاجت پاتې دی؟ او له هغه څخه څه فائده عائده کیږي؟ نو بالآخر پېغمبر د کفّارو د داسې خبرو اترو څخه سخت متأثر شو، او له هغه منکرانو څخه بې هیلې او ناامیده شو، او داسې دعا یې وکړه:

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِي بِمَا كَذَّبُونِ ﴿۳۹﴾ قَالَ عَمَّا قَلِيلٍ لَيُصْبِحُنَّ نَادِمِينَ ﴿۴۰﴾

وویل (هود یا صالح): ای ربه ځما ! مدد وکړه له ما سره په سبب د دې چې دروغجن یې وبللم زه (او ځما رسالت یې ونه مانه). نو وفرمایل (الله هود یا صالح ته چې) پس له لږ مدّت خامخا وبه ګرځي (دغه عادیان یا ثمودیان) پښېمانه (په دغه کفر او تکذیب خپل).

تفسیر: یعني د الله تعالی عذاب ورتلونکی دی، چې وروسته له هغه به افسوس او ارمان کول هیڅ د دوی په درد نه خوري، او نه به څه نفع وررسوي.

فَأَخَذَتْهُمُ الصَّيْحَةُ بِالْحَقِّ

پس ونیول دوی چغې د هلاکت په حق (او عدل) سره.

تفسیر: له دې په ښکاره ډول دغه مترشح کیږي چې دغه قصه د «ثمود» وه چې د هغه امّت په سخت غږ سره مړ شوی دی، او پر «عاد» سخت باد الوتی وو، او چا ویلي دي چې: دغه قصه د عادیانو ده، چې د «الأعراف» په سورت او په هود

او په شعراء کې په قصې د نوح پسې همدغه ذکر دی، نو بناء پر دغه هر بېخ کن عذاب ته «صيحة» وايه شي، نو ځکه دلته هم «صيحة» ذکر شوه.

فَجَعَلْنٰهُمْ غُثَآءً ۚ فَبُعْدًا لِّلْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٤١﴾

پس (هلاک شول نو) وګرځول مونږ دوی شاوړي (خس خاشاک د سيلاب)، پس لرېوالی دی قوم ظالمانو ته (له رحمته د الله).

تفسير: يعني لکه چې سيلاب (ځپان) خس او خاشاک له خپله ځانه سره وړي؛ همداسې د الله تعالی د عذاب په سيلاب کې دوی هم وبهېدل او لاهو شول.

ثُمَّ اَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قُرُوْنًا اٰخَرِيْنَ ﴿٤٢﴾ مَا تَسْبِقُ مِنْ اُمَّةٍ اَجَلَهَا وَمَا يَسْتَاْخِرُوْنَ ﴿٤٣﴾

بيا پيدا کړ مونږ وروسته له هغو (ثموديانو يا عاديانو) اهل د زمانو نور (لکه قوم د لوط او شعيب).
نشي ړومبی کېدی هيڅ قوم له وعدې مقررې خپلې، او نه وروستی کېدی شي ترې.

تفسير: يعني هر قوم چې د خپلو انبياوو تکذيب وکړي؛ ګرد په همغو خپلو مقرره وو وعدو سره هلاک کيږي، هر ميعاد او هره نېټه چې د هر قوم لپاره مقرره شوې ده؛ هغه د يوې شېبې له مخې هم نه وړاندې او نه وروسته کيږي.

ثُمَّ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَا ۗ كُلَّمَا جَآءَ اُمَّةً رَّسُوْلُهَا كَذَّبُوْهُ فَاَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَّجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ ۚ فَبُعْدًا لِّقَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿٤٤﴾

بيا ولېږل مونږ رسولان خپل حال دا چې يو په بل پسې پيوست وو، هر کله چې رابه غی کوم امّت ته رسول د دوی؛ نو دروغجن به يې باله دی، پس پرله پسې به کړل مونږ ځينې د دوی په ځينو نورو (په هلاکولو کې)، او وګرځول مونږ دوی تشې قصې (د تعجّب په عالم کې)، پس لرې والی دی (د الله له رحمته) هغه قوم ته چې نه راوړي ايمان (په مؤمن به شيانو باندې).

تفسير: يعني الله تعالی د رسولانو سلسله روانه کړه، او يو په بل پسې يې نبي ورلېږه، او د مکذبينو هم د يوه پسې د بل تباه، فناء او برباد بدل جاري وو، له يوه جانبه د انبياوو بعثت او له بل جانب د منکرينو د اهلاک لمبرونه به سره لګېدل، لکه چې په همدغه سلسله کې ډېر اقوام سره تباه شول، چې له هغوی څخه د حيرت او عبرت نه ډکو قصو او افسانو ماسوا بل هيڅ شی نه دی پاتې، او نن د هغوی داستانونه يوازې د پند، نصيحت، او عبرت لپاره ويلی او اوروليی کيږي.

ثُمَّ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى وَاَخَاهُ هٰرُوْنَ ۙ۬ بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿٤٥﴾ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا عَالِيْنَ ﴿٤٦﴾

بيا ولېږه مونږ موسی او ورور د ده هارون په دلائلو (د قدرت او هغو معجزو) خپلو سره، او په برهان دليل سند ښکاره. طرف د فرعون او قوم د ده (فرعونيانو) ته، پس کبر سرکشي يې وکړه (له ايمانه) حال دا چې وو دوی قوم متکبّر (سرکش پر خلاف د موسی).

تفسير: نو ځکه د الله تعالی پيغام يې په خاطر کې رانهووړ، چې د کبر او غرور نشې د دوی دماغونه بيخي خراب او مختل کړي وو.

فَقَالُوٓا۟ أَنُؤْمِنُ لِبَشَرَيْنِ مِثْلِنَا وَقَوْمُهُمَا لَنَا عَٰبِدُونَ ﴿٤٧﴾

پس وويل (قبطيانو): آيا پس ايمان راوړو مونږ پر دوو سړيو په مثل شان څمونږ حال دا چې قوم د دوی (سبطيان) مونږ ته خادمان (مريان) دي.

تفسير: يعني د موسى عليه السلام او هارون عليه السلام قوم بني اسرائيلو خو څمونږ مرييتوب او مزدوري كوي، نو د دوی له منځه مونږ د دغو دوو سړيو سيادت او مشرتوب څرنګه منلی شو؟.

فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا۟ مِنَ ٱلْمُهْلَكِينَ ﴿٤٨﴾ وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا مُوسَى ٱلْكِتَٰبَ لَعَلَّهُمْ يَهْتَدُونَ ﴿٤٩﴾

پس دروغجن وبلل دغو (موسى او هارون لره قبطيانو) پس شول (قبطيان) له هلاك كړيو شويو (په غرق سره). او خامخا په تحقيق وركړې وو مونږ موسى ته كتاب (تورات) ښايي چې دغه (بني اسرائيل) سمه صافه لاره ومومي (په دې تورات سره).

تفسير: يعني د فرعون له اهلاك څخه وروسته مونږ بني اسرائيلو ته «تورات شريف» وركړ، څو خلق پر هغه تګ او عمل وكړي، او تر جنّت او د الله د رضاء تر منزل پورې ورسېدی شي.

وَجَعَلْنَا ٱبْنَ مَرْيَمَ وَأُمَّهُۥٓ ءَايَةً وَءَاوَيْنَٰهُمَآ إِلَىٰ رَبْوَةٍ ذَاتِ قَرَارٍ وَمَعِينٍ ﴿٥٠﴾

او ګرځولي وه مونږ (قصه د) ځوی د مريمې او د مور د ده (يو لوی) دليل (د قدرت)، او مونږ ځای وركړی ـ راوستي وو دوی هسكې (اوچتې) ځمكې ته چې خاونده د قرار ده (چې اوسېدونكي يې په ارام دي)، او خاونده د اوبو پاكو صافو بهېدونكو ده.

تفسير: يعني دغه د الهيه وو قدرتونو له دلائلو او نښو څخه دی، چې يواځې د مور له ګېډې يې بې له پلاره عيسى المسيح عليه السلام پيدا كړی دی، لكه چې په «آل عمران» او د «مريم» په سورتونو كې د دې تقرير ليكلی شوی دی.

«ربوة» هسكې (اوچتې) ځمكې ته ويلی شي، چې بيت المقدس يا دمشق يا مصر وو، او پخپلو نورو شاوخوا ځمكو باندې لوړه ده، ښايي دا هم هغه هسكه (اوچته) ځمكه يا غونډۍ وي چې د لنګون په وخت كې هلته بي بي مريمې تشريف درلود (لرلو)، لكه چې د «مريم» د سورت دغه آيات پرې دلالت كوي:

﴿ فَنَادَىٰهَا مِن تَحْتِهَآ أَلَّا تَحْزَنِى قَدْ جَعَلَ رَبُّكِ تَحْتَكِ سَرِيًّا * وَهُزِّىٓ إِلَيْكِ بِجِذْعِ ٱلنَّخْلَةِ تُسَٰقِطْ عَلَيْكِ رُطَبًا جَنِيًّا ﴾ چې دغه ځای هسك وو، او ترې لاندې چينه يا وياله بهېده، او د خُرما ونه هغه ته نژدې وه (كذا فسّره ابن كثير رحمه الله).

يَٰٓأَيُّهَا ٱلرُّسُلُ كُلُوا۟ مِنَ ٱلطَّيِّبَٰتِ وَٱعْمَلُوا۟ صَٰلِحًا

ای رسولانو ! خورئ تاسې له طيّباتو (پاكيزه وو طعامو) څخه او وكړئ تاسې ښه (عملونه).

تفسير: يعني د ګردو انبياوو په دين كې همدغه يو حكم شته چې حلال خوراك له حلالې لارې څخه ګټئ او ښك كارونه كوئ !، او ښايي چې په ښكو كارونو ګرد خلق سره مشغول او مصروف اوسي، لكه چې ټولو انبياوو عليهم السلام په نهايت مضبوطۍ او استقامت سره د حلال اكل، د مقال صدق، او د ښكو اعمالو په مواظبت توصيه او خپل امت ته تأكيدات كول.

د عظيم الشأن قرآن په بل ځای كې دغسې حكم چې دلته رسولانو ته وركړی شوی دی؛ «عامة المؤمنين» ته وركړی شوی دی، په دغه كې د نصرانيانو د رهبانيت ترديد هم شوی دی، چې د عيسى عليه السلام له ذكره سره

خاص مناسبت لري، له احاديثو څخه معلومېږي چې د «هر چا خوړل، څښل، آغوستل چې له حرامو څخه وي؛ د هغه د دعاء د قبول توقع نه ښايي چې وکړه شي»، په ځينو احاديثو کې دي: «هغه غوښه چې د حرامو څخه زرغونه شوي وي؛ د دوزخ اور د هغه زيات حقدار دی»، (العياذ بالله).

إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ ﴿٥١﴾

بېشکه زه پر هغو کارونو چې کوئ يې تاسې ښه عالم خبردار يم.

**تفسير:** يعني حلال خوړونکيو او نېکو کارو ته ښايي چې داسې عقيده ولري چې الله تعالی د ده له ټولو پټو او ښکاره وو احوالو او افعالو څخه ښه عالم دی، او له هغه سره موافق به له هر چا سره معامله کوي، دغه اګر که له رسولانو سره پخپلو زمانو کې خطاب دی، مګر په واقع کې د دوی امّت ته د دغه مطلب اورول مقصود دي.

وَإِنَّ هَٰذِهِۦٓ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَٰحِدَةً وَأَنَا۠ رَبُّكُمْ فَٱتَّقُونِ ﴿٥٢﴾ فَتَقَطَّعُوٓاْ أَمْرَهُم بَيْنَهُمْ زُبُرًا ۖ

او بېشکه دا (سماوي دين چې توحيد او نور مؤمن به شيان دي، ای رسولانو !) ستاسو دين (او د ستاسو د ټولو امتيانو دين) دی په دې حال کې چې دين يو دی، او زه ستاسو رب يم، نو وويرېږئ له ما. پس پرې کړ (امّتيانو د دوی) دين خپل په منځ خپل کې ټوټې ټوټې.

**تفسير:** يعني د اصولو په اعتبار د ګردو انبياوو دين او ملّت يو او د ګردو الله هم يو دی، چې د هغه د عصيان څخه تل وېره په کار ده، ليکن خلقو په دغه واحد اصل کې اختلاف وغورځاوه، او د دين اصل يې سره ټوټې ټوټې کړ، او بېلې بېلې لارې يې په کې جوړې کړې، پخپل سر د آراوو او اهواوو په متابعت په سلهاوو فرقې او مذاهب جوړ شول، انبياء دغه تفريق خلقو ته نه دی ښوولی، د دوی په نزد د ازمنه وو او امکنه وو او نور اختلاف صرف فروعي اختلاف وو، او په اصول الدين کې ګرد سره بالکليه متفق وو.

كُلُّ حِزْبٍۭ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٥٣﴾

چې هر يو حزب ګوند (له دوی نه) په هغه (باطل دين) چې له دوی سره دی، خوشال دی.

**تفسير:** يعني داسې به يې ګڼل چې يواځې همدغه مونږ پر حق دين يو، او ځمونږ همدغه لاره سمه او صافه لاره ده.

فَذَرْهُمْ فِى غَمْرَتِهِمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٥٤﴾

پس پرېږده (ای محمده !) دوی په ګمراهي خپلې کې تر يوه وخته (د مرګه) پورې.

**تفسير:** يعني هغو کسانو چې د انبياوو په متفقه وو هداياتو کې ګوندونه (ډلې) جوړ کړل، او سره بېلې بېلې فرقې او ملّتونه يې قائم کړل، او هره فرقه يواځې پر هم هغو خپلو عقائدو او خيالاتو د زړه له کومې ټينګه ولاړه ده، او په هيڅ ډول له هغه څخه مخ نه اړوي، اګر که ته ډېر پند او نصيحت هم وفرمايې، نو تاسې په دغه غم کې خپل ځان زيات مه کړوئ !، بلکه دوی ته لږ مهلت ورکړئ !، چې دوی د غفلت او جهالت په نشو کې ډوب او نشه پراته وي، څو هغه موعوده ساعت ورسيږي، او د دوی ستر ګې ټېغې ټېغې پاتې شي، يعني موت يا د الله تعالی عذاب د دوی پر سرونو او شاوخوا وګرځي.

أَيَحْسَبُونَ أَنَّمَا نُمِدُّهُم بِهِۦ مِن مَّالٍ وَبَنِينَ ﴿٥٥﴾ نُسَارِعُ لَهُمْ فِى ٱلْخَيْرَٰتِ ۚ بَل لَّا يَشْعُرُونَ ﴿٥٦﴾

آيا ګمان کوي دوی د دې چې بېشکه هر هغه څيز چې ورکوو يې مونږ دوی ته (په دنيا کې

مدد ورسره کوو) په هغه څيز له ماله او (له) ځامنو. چې تلوار کوو مونږ دوی ته په خيراتونو (او اکرامونو؟ نه ده داسې) بلکه نه پوهيږي دوی (چې دا استدراج او امهال دی).

تفسير: همدغه د دوی خيال وو، لکه چې ويل به يې: ﴿وَقَالُوا نَحْنُ أَكْثَرُ أَمْوَالًا وَأَوْلَادًا وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ﴾ (د السبأ سورت (۴) رکوع (۳۵) آيت (۲۲) جزء)، يعنې که مونږ د الله تعالی په نزد مردود او مبغوض وی؛ نو دغه مال او دولت او اولاد او نور يې ولې مونږ ته په دغه کثرت سره راکړي دي؟ يعنې په دې نه پوهيږي چې د مال او اولاد دغه افراط د دوی د فضيلت او کرامت له سببه نه دی، بلکه د امهال او استدراج په بناء دی، هغومره مهلت او ډيل چې دوی ته ورکاوه کيږي؛ په همدغه اندازه د دوی د شقاوت جام تر څنډو (غاړو) پورې ډکيږي: ﴿وَالَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُونَ﴾ (۹ جزء د الأعراف سورت (۱۸۲ – ۱۸۳) آيتونه (۲۳) رکوع).

إِنَّ الَّذِينَ هُمْ مِنْ خَشْيَةِ رَبِّهِمْ مُشْفِقُونَ ﴿۵۷﴾

بېشکه هغه کسان چې دوی له (خوفه د) عذاب د رب خپل ويريدونکي دي تل.

تفسير: يعنې صادق او خالص مؤمنان سره له ايمانه او احسانه د کفّارو او مغرورينو پشان له «مکر الله» څخه مأمون نه دي، بلکه تل تر تله د الله تعالی له وېرې څخه لړزيږي او ويريږي چې الله تعالی دې نه کړي چې دغه انعامات او احسانات چې پر مونږ په دغه دنيا کې شوي دي؛ امهال او استدراج وي، د حسن بصري رحمه الله مقوله ده: «مؤمن نېکی کوي او ويريږي، او منافق بدی کوي او له سره يې فکر خراب نه وي».

وَالَّذِينَ هُمْ بِآيَاتِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُونَ ﴿۵۸﴾

او هغه کسان چې دوی په آيتونو د رب خپل ايمان راوړي.

تفسير: يعنې پر کونيه وو او شرعيه وو آيتونو دواړو باندې يقين او داسې عقيده لري، چې هر شی دلته راد مخه کيږي؛ هغه عين الحکمت او صواب دی، او هر هغه شی چې هلته رادمخه کيـږي؛ هغه هـم بالکل حق او هر هغه حکم چې راکاوه کيږي؛ هغه من کل الوجوه صواب او معقول دی.

وَالَّذِينَ هُمْ بِرَبِّهِمْ لَا يُشْرِكُونَ ﴿۵۹﴾

او هغه کسان چې دوی په رب خپل پورې نه شريکوي (بل هيڅ شی).

تفسير: يعنې پر خالص ايمان او توحيد په طريقه د اخلاص سره قائم دي، او هر يو عمل په صدق او اخلاص سره اداء کوي، د خفي يا جلي شرک يوې شائبې ته د راتللو موقع نه ورکوي.

وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوْا وَقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَىٰ رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ ﴿۶۰﴾

او هغه کسان چې ورکوي هر هغه چې ورکوي يې دوی (له زکاتونو او خيراتونو) حال دا چې زړونه د دوی ويريدونکي دي (له نه قبلېدو نه، ځکه چې) بېشکه دوی رب خپل ته ورتلونکي دي.

تفسير: يعنې څه پوهيږو چې هغه هلته مقبول شو که نه؟ وروسته مو په کار راځي که نه؟ د الله تعالی په لاره کې د صرفولو څخه تل د دوی په زړونو کې دغه وېره او اندېښنه وي او پر خپل عمل باندې نه مغروريږي، او سره له نېکی کولو هم ويريږي.

﴿أُولَٰٓئِكَ يُسَٰرِعُونَ فِي ٱلۡخَيۡرَٰتِ وَهُمۡ لَهَا سَٰبِقُونَ ۝٦١﴾

دغه کسان ډېر تلوار (او رغبت) کوي په نېکيو (طاعاتو) کې، او دوی هغو (نېکيو) ته ړومبی کېدونکي دي (له نورو خلقو نه).

تفسير: هـم په دنيا کې او هم په آخرت کې، لکه څنګه چې الله جل جلاله فرمايلي دي: ﴿فَـَٔاتَىٰهُمُ ٱللَّهُ ثَوَابَ ٱلدُّنۡيَا وَحُسۡنَ ثَوَابِ ٱلۡأٓخِرَةِ﴾ (۴ جزء، د آل عمران سورت (۱۴۸) آيت، (۱۵) رکوع)، نو په حقيقت کې اصلي نيکي په صالحه وو اعمالو، حميده وو أخلاقو او فاضله وو ملکاتو کې وشوه، نه په اموالو او اولادو کې لکه چې د کفارو ګمان وو.

﴿وَلَا نُكَلِّفُ نَفۡسًا إِلَّا وُسۡعَهَاۖ وَلَدَيۡنَا كِتَٰبٞ يَنطِقُ بِٱلۡحَقِّ وَهُمۡ لَا يُظۡلَمُونَ ۝٦٢﴾

او نه تکليفوو (نه مکلّفوو) هيڅ نفس مګر په قدر د طاقت د ده، او ځمونږ سره يو کتاب (لوح محفوظ يا عملنامې) دی، چې بيانوي حق رښتيا، او پر دوی به هيڅ قسم ظلم ونه کړ شي (په تزييد د عقاب، يا تنقيص د ثواب سره).

تفسير: يعنې هغه اعمال او خصال چې پاس بيان شول، کوم داسې مشکل کار نه دی، چې د هغه تحمّل د انسان له طاقته خارج وي، ځمونږ عادت داسې نه دی چې خلق په مالا يطاق شيانو مکلّف کړو، دغه ګردې خبرې داسې دي چې که تاسې توجه وکړئ؛ نو پخپله يې حاصلولی شئ، هغه کسان چې د کاملينو سابقينو درجې ته نشي رسېدلی، دوی دې هم خپل وسعت او همّت سره موافق پوره هم هغسې سعي او کوښښ وکړي چې پرې مکلّف دي، د هر يوه اعمال ځمونږ په نزد د اعمالو په صحائفو کې درجه په درجه ليکلي موجود دي، چې د قيامت په ورځ د ګردو په مخ کې پرانستلی او کېښودلی کيږي، او د هغه سره موافق به دوی ته جزاء ورکوله کيږي، چې په هغه کې د يوې ذرې په اندازه هم ظلم او تېری نه کيږي، او نه د چا کومه نيکي ضايع کيږي، او نه يې اجر کم ورکاوه کيږي، نه بې وجه او بې قصوره د بل چا بار پرې اچولی کيږي.

﴿بَلۡ قُلُوبُهُمۡ فِي غَمۡرَةٖ مِّنۡ هَٰذَا وَلَهُمۡ أَعۡمَٰلٞ مِّن دُونِ ذَٰلِكَ هُمۡ لَهَا عَٰمِلُونَ ۝٦٣﴾

بلکه زړونه د دغو (کفّارو) په غفلت کې دي له دغه (قرآنه)، او شته دوی ته عملونه (ناپاکه او کارونه بېباکه) غير له دې (شرکه د دوی) چې دوی د هغو عملونو کوونکي دي (نو به پرې بيا مومي جزاء او هم دوی به داسې په غفلت او معصيت کې مشغول اوسيږي).

تفسير: د آخرت له حسابه او کتابه دغه خلق غافل او بې پروا، او په دنيوي چارو کې مشغول او لګيا دي، او له سره له هغو څخه نه وزګاريږي، چې دِ آخرت په طرف توجّه وکړي، يا يې دا مطلب چې د دوی په زړونو کې کفر او نفاق ځای نيولی دی، او دوی د شک، تردد، غفلت او د جهالت په تورو تيارو موجونو او چپو کې ډوب شوي دي، لويه ګناه خو دغه شوه، باقي له دې نه ماسوا نور ډېر ګناهونه شته چې دوی يې سره ټولوي، او د يوې شيبې له مخې هم له هغه څخه نه دي جدا، او نه ښايي هم ترې جدا شي، ځکه هغه بد أعمال چې د دوی په حق کې د دوی د بد استعداد لامله (له وجې) مقدّر شوي دي، هغه به خامخا دوی کوي، او خامخا د هغه جزاء به مومي.

﴿حَتَّىٰٓ إِذَآ أَخَذۡنَا مُتۡرَفِيهِم بِٱلۡعَذَابِ إِذَا هُمۡ يَجۡـَٔرُونَ ۝٦٤ لَا تَجۡـَٔرُواْ ٱلۡيَوۡمَۖ إِنَّكُم مِّنَّا لَا تُنصَرُونَ ۝٦٥﴾

تر هغه پورې کله چې ونيسو مونږ (هم هغه) غنيان (غټان منعمان) د دوی په (دنيوي) عذاب (د قتل يا قحط يا نور، نو) ناڅاپه دوی به فريادونه کوي (ټنډارې وهي). مه کوئ فرياد نن ورځ (ځکه چې) بېشکه تاسې سره له مونږ څخه هيڅ مدد به ونه کړی شي (په خلاصولو کې له عذابه).

تفسير: تفسير: يعنې څه وخت چې په دنيوي يا اخروي عذاب کې مبتلا شي؛ نو ژاړي او سخت شورماشور اچوي، چې مونږ ته له دغه آفت څخه نجات راکړه ! ښه، په دغه وخت کې به د دوی نجات ورکوونکی څوك وي؟ نو حکم صادريږي چې چپ شئ ! له سره شورماشور مه کوئ ! چې دغه ټولې ژړا او انګولا مو بېکاره ده، نن هيڅوك ستاسې نصرت او مرسته نشي کولی، او نه مو څمونږ له عذابه خلاصولی شي.

قَدْ كَانَتْ اٰيٰتِىْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ فَكُنْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ تَنْكِصُوْنَ ۝ مُسْتَكْبِرِيْنَ ۖ بِهٖ سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ ۝

په تحقيق وو آيتونه (د قرآن) څما چې لوستلي به شو پر تاسې (هر وخت) پس وئ به تاسې په پوندو خپلو چې بېرته به ګرځېدئ (او نه به مو مانه کلام څما). په دې حال چې کبر کوونکي به وئ په دې (قرآن يا محمد يا کعبه) حال دا چې د شپې قصې کوونکي به وئ (په طعن د مقدّساتو کې) مسخرې به مو کولې، پرېښودل به مو (قرآن او نور مطهرات او ترې تنښتېدئ به).

تفسير: يعنې ولې اوس شورماشور لګوئ او نارې سورې وهئ، هغه وخت مو په ياد راوړئ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به تاسې ته د الله تعالى آيتونه اورول او تاسې به په ډېر سرعت سره ترې تنښتېدئ، او د هغو آيتونو اورېدلو ته به مو هيڅ فکر او توجّه نه کوله، بلکه ستاسې کبر، غرور او ځانمني (خودنمايي) به له سره تاسې ته اجازه نه درکوله چې هغه ومنئ، يا د انبياء الله عليهم السلام خبرو ته لږ غوږ کېږدئ، يعنې کفّار به د رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلّم له مجلسه داسې تښتېدل لکه چې دوی (العياذ بالله) د کومې چټې (بېکاره) او فضولې قصې له اورېدلو څخه په تنګ شوي ترې لاړ شوي وي، يا به د ﴿سٰمِرًا تَهْجُرُوْنَ﴾ مطلب دا وي چې د شپې له مخې به دوی په حرم شريف کې کېناستل، او د دې په ځای چې مؤمنان شي، او په حرم محترم کې عبادت وکړي، او ترې چارچاپېر طواف وکړي؛ د رسول الله صلى الله عليه وسلم يا د عظيم الشأن قرآن په نسبت به يې خبرې کولې، او راز راز قصې او افسانې به يې له خپله ځانه جوړولې، چا به ورته کوډګر ساحر ويل، چا به د شاعري نسبت ورته کاوه، چا به کاهن باله، يو به يو شی ويل، بل به بل شی اورول.

اَفَلَمْ يَدَّبَّرُوا الْقَوْلَ اَمْ جَآءَهُمْ مَّا لَمْ يَاْتِ اٰبَآءَهُمُ الْاَوَّلِيْنَ ۝

آيا پس فکر نه کوي (کُفّار) په دې وينا کې (چې قرآن دی)؟ آيا که راغلي دي دوی ته هغه څه چې (رسول او قرآن دی او) نه وو راغلي پلرونو پخوانيو د دوی ته (نو ځکه انکار کوي)؟.

تفسير: يعنې دغه منکرين د قرآن عظيم الشأن په محاسنو کې غور او فکر نه کوي، که نه حقيقت الحال به ورمنکشف کېده، چې بلا شبهه دغه د الله تعالى جل وعلا شأنه کلام دی، چې په هغه کې د ټولو امراضو صحيح علاج ښوولی شوی دی، چې الفاظ يې موجز او معجز او معاني يې واضح او لائح دي، او د نورو د سماوي کتابونو او انبياوو مصدق او مؤيد دی، آيا که راغلي دوی ته هغه څه چې نه وو راغلي پلرونو پخوانيو د دوی ته؟ يعنې نصيحت کوونکی به تل وو، يا به انبياء الله عليهم السلام يا به د انبياوو أتباع، او اسماني کتابونه هم پرله پسې نازلېدل، کله يو او کله بل، کله په يو ځای او کله په بل ځای کې، او دغه کومه نوې خبره نه ده، چې د هغې مثال او نمونه په پخوانيو ازمنه وو کې نه ده لېدلې شوې، هو ! دغه ډېر أکمل او خورا أشرف او أقدس کتاب چې اوس نازل شوی دی، په دغه لوی شأن اعلی مرتبې سره پخوا کوم کتاب نه دی راغلی، نو د دې مقتضی داسې وه چې لا زيات ښايي د دغه نعمت قدر مو کړی وی، او په ښه شان سره مو د هغه استقبال کولی، او د هغه د غږ په مقابل کې به مو «لبّيك» ويلی وی، لکه چې أصحابو کرام رضي الله تعالى عنهم ويلی دی.

تنبيه: ښايي دلته له ﴿اٰبَآءَهُمُ الْاَوَّلِيْنَ﴾ څخه «الآباء الأبعدين» (لرى پلرونه او نيكونه) مراد وي، او هغه چې ﴿يٰسٓ﴾ شريف په سورت كې ﴿لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ﴾ راغلى دى؛ هلته به د «الآباء الأقربين» نژدى پلرونه او نيكونه اراده كړه شوي وي، والله أعلم.

اَمْ لَمْ يَعْرِفُوْا رَسُوْلَهُمْ فَهُمْ لَهٗ مُنْكِرُوْنَ ﴿۶۹﴾

آيا كه نه دى پېژندلى (كفّارو) رسول خپل (په صداقت او امانت سره) پس دوى له ده څخه منكران دي.

تفسير: يعني آيا ځكه يې پر تكذيب او اعراض لاس پورې كړى دى، چې هغوى د خپل د دغه نبي الله له أحواله باخبره نه دي؟ حال دا چې ګرد عرب پوهيږي چې محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم له هلكتوبه صادق، أمين، عفيف او متّقي وو، خاوند د علم، حلم، كرم، جود، سخا، وفا، احسان، مروت، او كمال د عقل، صحت، حسب، نسب، اخلاق او آداب وو، لكه جعفر رضي الله تعالى عنه د حبشيّ د نجاشي (باچا) په مقابل كې او مغيره بن شعبه د نائب كسرى په مخ كې او ابو سفيان د كفر په حالت كې د روم د قيصر په دربار كې د همدغو اوصافو اظهار كړى وو، نو بيا د داسې صادق متقي بنده په نسبت داسې ګمان كېدى شي چې (العياذ بالله) هغه پر الله تعالى دروغ تړي، يا هغه يو اوپره سړى دى، يا بيخي نااشنا او پردى او بېګانه دى؟

اَمْ يَقُوْلُوْنَ بِهٖ جِنَّةٌ ؕ بَلْ جَآءَهُمْ بِالْحَقِّ وَاَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كٰرِهُوْنَ ﴿۷۰﴾

آيا وايي دوى چې په ده لېونتوب دى (نه ده داسې لكه چې دوى يې وايي، او ګمانونه كوي) بلكه راغلى دى (دا محمّد) دوى ته په حق (دين) سره، او اكثر د دوى حق لره ناخوښوونكي دي.

تفسير: ځكه چې مخالف دى له هواى نفساني او له مقتضاى شيطاني د دوى، او اكثر يې ځكه وفرمايل؛ چې بعض محض له جهته د شرم او ننګ او ملامتي د قوم ايمان نه راوړي، لكه ابو طالب.

شيخ الهند د دې آيت ترجمه داسې كړې ده: «يا وايي چې هغه سودايي دى، هيڅ نشته، هغه خو دوى ته رښتيا خبره راوړې ده، او پر دغو ډېرو رښتيا خبره بده لګيږي».

وَلَوِ اتَّبَعَ الْحَقُّ اَهْوَآءَهُمْ لَفَسَدَتِ السَّمٰوٰتُ وَالْاَرْضُ وَمَنْ فِيْهِنَّ ؕ

او كه متابعت كړى وى حق (الله، قرآن) د نفساني غوښتنې د دوى (په وجود د ډېرو معبودانو كې)؛ نو خامخا خراب شوي به وو اسمانونه او ځمكه او هر هغه (مخلوق) چې په دوى كې دى.

تفسير: يعني كه رښتيا خبره پر دوى بده لګيږي؛ ودې لګيږي، صداقت، حقانيت او رښتيا د دوى د خوښې او خواهش نشي تابع كېدى، كه د دوى د خوښې او خواهشونو سره موافق احكام صادرولى؛ نو د هغه الوهيت به نه وى پاتې، او په دغه تقدير سره به د اسمان او د ځمكې دغه محكم انتظامات څرنګه قائم پاتې كېدى شوى؟

بَلْ اَتَيْنٰهُمْ بِذِكْرِهِمْ

بلكه راوړى مو دى دوى ته ذكر پند د دوى (چې قرآن مجيد دى).

تفسير: او دوى به تل د هغه ارمان او تمنّا داسې كوله: ﴿لَوْ اَنَّ عِنْدَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْاَوَّلِيْنَ ۞ لَكُنَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ﴾ (۲۳ جزء د الصآفات سورت (۱۶۸ - ۱۶۹) آيت (۵) ركوع).

فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُّعْرِضُونَ ﴿٧١﴾

پس دوی له ذکر پند خپل مخ ګرځوونکي دي (فکر او غور ورته نه کوي).

تفسیر: یعنې څه وخت چې دغه قرآنکریم دوی ته راغی، او داسې راغی چې له هغه څخه د دوی قومي حیثیت ته عظیم الشأن فخر او شرف حاصل شو؛ نو اوس دوی ولې ترې مخ اړوي؟ او داسې اعلی فضل او شرف په ویړیا له خپله لاسه ضایع کوي.

أَمْ تَسْأَلُهُمْ خَرْجًا فَخَرَاجُ رَبِّكَ خَيْرٌ ۖ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴿٧٢﴾

آیا غواړې ته (ای محمده !) له دوی نه څه اجرت (په دغه تبلیغ او رسالت خپل، نو ځکه درباندې تهمت وایي)؟ پس هغه اجرت د رب ستا چې (دنیوي رزق او اخروي ثواب دی) خیر ډېر غوره دی (تاته د دوی له اجره)، او هم دغه (الله) ډېر غوره د ټولو رزق روزي ورکوونکیو دی.

تفسیر: یعنې تاسې د دعوت او تبلیغ او نصیحت او خیر غوښتلو په مقابل کې له دوی نه د څه مزدورۍ او معاوضې او اجرت غوښتونکي هم نه یئ، هغه د دواړو دولت چې پاک الله تاته مرحمت فرمایلی دی؛ هغه د دوی د هغې معاوضې څخه ډېر بهتر دی.

وَإِنَّكَ لَتَدْعُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٧٣﴾ وَإِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ عَنِ الصِّرَاطِ لَنَاكِبُونَ ﴿٧٤﴾

او بېشکه ته خامخا بولې دوی صافې سمې لارې طرف ته (چې دین د اسلام دی). او بېشکه هغه کسان چې نه راوړي ایمان په قیامت له سمې صافې لارې څخه خامخا کږېدونکي دي (لارې د ضلالت ته).

وَلَوْ رَحِمْنَاهُمْ وَكَشَفْنَا مَا بِهِمْ مِّنْ ضُرٍّ لَّلَجُّوا فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿٧٥﴾

او که مهرباني کړې وی مونږ پر دوی، او لرې کړې وی مونږ هغه چې په دوی وو له ضرره (چې قحط دی)؛ نو خامخا به لا ټینګ شوي وو دوی په ګمراهۍ تجاوز سرکښۍ خپله کې حال دا چې حیران او متردّد به وو.

تفسیر: یعنې که دغه منکران له تکلیف څخه وباسو، او آرامي ور په برخه کړو؛ بیا هم دوی احسان نه مني، او له شرارت او سرکښۍ څخه نه اوړي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ښېرا یو ځلې پر مکیّانو قحط (سوکړه) نازل شو، بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دعاء هغه ترې لرې شو، ښایي چې دلته یې همغه فرمایلی وي.

وَلَقَدْ أَخَذْنَاهُمْ بِالْعَذَابِ فَمَا اسْتَكَانُوا لِرَبِّهِمْ وَمَا يَتَضَرَّعُونَ ﴿٧٦﴾

او خامخا په تحقیق ونیول مونږ دوی په عذاب سره (څو عاجز او نرم شي)؛ پس غاړه یې کېښښوده (او عاجزي یې ونه کړه) رب خپل ته، او نه تضرّع زاري یې وکړه (بلکه لا سرکښ او متکبّر شول).

تفسیر: مثلاً قحط او نور آفات پرې مسلط شول، خو سره له هغه دوی د عجز له لارې وروړاندې نشول، او د الله تعالی احکامو ته یې غاړه کېښښودله.

حَتّٰٓى إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِم بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيدٍ إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ ﴿٧٧﴾

تر هغه پورې کله چې وپرانستله مونږ پر دغو (منکرانو) يو وَر (دروازه) خاوند د عذاب سخت؛ ناڅاپه دوی په دغه (عذاب) کې حيران نااميده وو له هر خيره.

تفسير: له دې نه يا د آخرت عذاب مراد دی، يا د جنګونو د هغو دروازو (وَرونو) پرانستل مقصود دي، چې په هغوی کې دوی ګرد سره ستړي او ستومان او بېرته کېناستل.

وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَالْأَفْئِدَةَ ۚ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿٧٨﴾

او دغه (الله) هغه ذات دی چې پيدا کړي يې دي تاسې ته غوږونه (د سامعې قوه)، او سترګې (د باصرې قوه)، او زړونه (د بصيرت قوه)، ډېر لږ شکر وباسئ تاسې (او حق يې ډېر لږ په ځای کوئ).

تفسير: په غوږونو سره د هغه تنزيليه آيات واورئ !، او په سترګو يې تکوينيه آيات وګورئ !، او په زړونو سره د دغو دواړو په پوهېدلو کې کوښښ وکړئ !، د دغو نعمتونو شکريه خو په دې کې وه چې د ده دغه درکړي قوّتونه تاسې د ده د احکامو په تعميل کې مصروف کړئ !، مګر داسې نه کيږي، او اکثر اوقات اکثر انسانان دغه قوّتونه بې ځايه لګوي.

وَهُوَ الَّذِي ذَرَأَكُمْ فِي الْأَرْضِ وَإِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٩﴾

او دغه (الله) هغه ذات دی چې پيدا کړي (خواره کړي) يې يئ تاسې په ځمکه کې، اوخاص همدغه (الله) ته به ورجمع کړی شئ په قيامت کې).

تفسير: هلته به د هر يوه د شکر ايستلو او شکر نه ايستلو بدل وررسيږي، په هغه وخت کې به هيڅ يو انسان او هيڅ يو عمل نه غير حاضريږي، هغه ذات چې دغه ګرد شيان يې منتشر (خواره) کړي دي؛ دغه کار هم هيڅ اشکال نه لري چې هغه ټول سره بيا يو ځای مجتمع او راټول کړي.

وَهُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ وَلَهُ اخْتِلَافُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٨٠﴾

او دغـه (الله) هغه ذات دی چې ژوندي کوي او مړه کوي، او خاص د همده کار دی اختلاف بدلول د شپې او د ورځې، نو آيا پس تاسې عقل نه چلوئ، (او عبرت نه اخلئ؟).

تفسير: د هغه الله تعالى لوی ذات په قدرت او قبضه کې چې د ژونديو وژل او د مړيو بيا ژوندي کول، يا له تيارو څخه رڼا ايستل، يا په رڼا کې د تيارو ننه ايستل دي (او د شپې او د ورځې سره اختلاف چې کله يې اوږدوي او کله يې لنډوي، کله يې يخوي او کله يې تودوي)؛ نو د دی لوی قدرت په مقابل کې دغه څه سختي او اشکال لري چې تاسې بيا ژوندي کړي، او له سترګو څخه مو دا جهل پردې لرې کړي؟ څو وروسته له هغه اشياوو حقائق ډېر په ښه صورت سره درمنکشف شي، لکه چې په قيامت کې به کيږي: ﴿فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ﴾.

بَلْ قَالُوا مِثْلَ مَا قَالَ الْأَوَّلُونَ ﴿٨١﴾ قَالُوا أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٨٢﴾
لَقَدْ وُعِدْنَا نَحْنُ وَآبَاؤُنَا هَٰذَا مِن قَبْلُ إِنْ هَٰذَا إِلَّا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ ﴿٨٣﴾

بلکه وايي (دا کفّار) په شان د هغې وينا چې ويلې ده پخوانيو کفّارو. چې (ويلي وو هغه قول پخوانيو کفّارو چې دغه دی:) ويل دوی: کله چې مړه شو مونږ، او شو مونږ خاورې او هډوکي (وراسته)؛ نو آيا مونږ به خامخا بيا ژوندي راپاڅول کيږو (بلکه نه کيږو). خامخا په تحقيق وعده کړې شوې ده له مونږ سره، او له پلرونو ځمونږ سره همدغه وعده پخوا له دې، نه دي دا خبرې مګر دروغجنې قصې دي د پخوانيو خلقو.

تفسير: يعنې کفّار وايي: دغه له سره د عقل او فهم خبرې نه دي، محض د پخوانيو خلقو د ړندو په تقليد پسې رهي (روان) دي، او همغه پخواني دقيانوسي شکوك او شبهات راوړاندې کوي، چې له دوی نه مخکې به ړومبنيو خلقو هم کول، يعنې وروسته له دې نه چې مونږ په خاورو کې ګډوډ شو؛ نو بيا به څرنګه ژوندي کيږو؟ داسې له عقله او پوهې لرې خبرې چې مونږ ته اورولې شي؛ پخوا له دې نه ځمونږ پلرونو او نيکه ګانو ته هم شوي دي، ليکن مونږ تر نن ورځې پورې د خاورې له ذراتو او د ورستو هډوکو له بخرکو د انسان خلقت او ژوندون نه دی ليدلی.

قُل لِّمَنِ الْأَرْضُ وَمَن فِيهَا إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٤﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٨٥﴾

ووايه (ای محمده ! دغو منکرانو ته) چې چاته ده دغه ځمکه او هغه مخلوقات چې په هغې کې دي (خلقًا وملکا وعَبيدًا) که چېرې يئ تاسې چې پوهېږئ؟ (نو راوښيئ خالق او مالك يې !). نو ژر وبه وايي: خاص الله ته دي، ووايه (ای محمده دوی ته: نو) آيا پس تاسې پند نه اخلئ (او غور پرې نه کوئ؟).

تفسير: چې د هغه الله تعالی قبضه پر ګرده ځمکه او د ځمکې پر ګردو شيانو ده؛ نو آيا دغه ستاسې يو موټی خاوره به د هغه له قدرته خارجه وي؟.

قُلْ مَن رَّبُّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ﴿٨٦﴾ سَيَقُولُونَ لِلَّهِ ۚ قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ﴿٨٧﴾

ووايه: څوك دي رب د اسمانونو اوو، او رب د عرش ډېر لوی؟. نو ژر وبه وايي دوی چې (دغه ټول خلقًا وملکا وعَبيدًا منسوب) الله ته دي، نو ووايه (ای محمده دوی ته چې) آيا پس نه ويرېږئ تاسې (له عذابه د الله، او ځان نه ساتئ له شرکه؟).

تفسير: چې دومره لوی مالك الملك به تاسې د دغو ګستاخيو او سپين سترګيو په بدل تر کوم ځای پورې کش کاږي؟ آيا دغه انتهايي ګستاخي او سپين سترګي نه ده چې هغه مطلق مالك الملك مو په خپل زعم له يوې بې مقدارې ذرې څخه هم عاجز او ناتوانه دروئ؟.

قُلْ مَن بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٨٨﴾ سَيَقُولُونَ
لِلَّهِ ۚ قُلْ فَأَنَّىٰ تُسْحَرُونَ ﴿٨٩﴾

ووايه (ای محمده دوی ته چې) څوك دی هغه ذات چې په لاس د ده کې باچاهي تصرّف دی د هر څيز، او دی پناه ورکوي (مخلوقاتو ته) او پناه نه ورکوله کيږي په (ضرر د) ده باندې که يئ تاسې چې پوهېږئ؟.نو ژر وبه وايي چې (دا صفات) خاص الله ته دي، ووايه (ای محمده دوی ته) پس څرنګه ټګي درباندې کوله شي (اوګرځئ له حقه، يا کوم طرف ته سحر درباندې کاوه شي).

**تفسیر:** یعنې په هر څیز د الله تعالی واک او اختیار چلیږي، او الله چې چاته د پناه ورکولو اراده وکړي پناه ورکوئ، مګر بل هیڅوک ده الله تعالی مجرم ته پناه نشي ورکولی نو ژر به دوی ووایې چې دغه خاص صفات الله تعالی ته دي، نو ورته ووایه ای محمده له کوم طرفه مکر او فریب در باندی کولی شې چې د هغه له امله تاسی مسحور شوي یاستئ او حق نه قبلوئ؟.

بَلْ أَتَيْنَٰهُم بِٱلْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴿٩٠﴾

بلکه راتله مو کړي دي دوی ته په حق (چې قرآن، توحید او بعث بعد الموت مو ورته راوړی دی)، او بېشکه دوی خامخا دروغجنان دي (چې ترې انکار کوي).

**تفسیر:** یعنې په دلائلو او شواهدو سره ظاهر کړی شوي دي، چې هر هغه چې دوی ته ویل کیږي؛ بیخي صحیح او حق دي، او دغو خلقو محض د دروغو خیالاتو متابعت کړی دی.

مَا ٱتَّخَذَ ٱللَّهُ مِن وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُۥ مِنْ إِلَٰهٍ إِذًا لَّذَهَبَ كُلُّ إِلَٰهٍۭ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ سُبْحَٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿٩١﴾

نه دی نیولی الله هیڅ ولد، او نشته ورسره هیڅ معبود (شریک په الوهیت کې)، او که وی ورسره بل معبود؛) نو په دغه وخت کې خامخا بیولی او (بېل کړی) به وو هر یو معبود هغه مخلوق چې پیدا کړی یې وو (دوی له نورو مخلوقاتو خپل ځان ته)، او خامخا غلبه کوله ځینو د دوی پر ځینو نورو، پاکي ده الله لره له هغه چې بیانوي یې (له ولد او شرک).

**تفسیر:** یعنې د ځمکې او د اسمان او تر ذراتو پورې د ټولو موجوداتو او مخلوقاتو مالك او مختار همغه الله جل جلاله دی، نه الله تعالی ځوی، لور ته محتاج، او نه مددګار یې په کار دی، او نه د ده په حکومت او سلطنت کې هیڅ کوم داسې شریک شته چې د یوې ذرې په اندازه د مستقل اختیار خاوند وي، او که داسې وی؛ نو د هر بااختیاره حاکم رعایا به سره بېلېده، او خپل لاو لښکر به یې ټولاوه، او په هغه بل به یې یرغل (حمله) وروور، او د عالم دغه مضبوط او محکم نظام به یې د ځو ورځو له مخې هم قائم نه پاتې کېده.

عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٩٢﴾

عالم دی پر پټو او په ښکاره وو، پس ډېر لوی (پورته لوړ) دی له هغه څیز چې شریکوئ یې ورسره.

**تفسیر:** یعنې چې د هغه د عام او تام قدرت حال پخوا له دې نه بیان شوی دی، او د هغه محیط علم داسې دی چې له هغه څنې هیڅ یو ظاهري او باطني او د غیب او شهادت خبرې پټې او مخفي نه دي، آیا د ده په قدرت کې هغه شیان شریکېدی شي چې د هغوی قدرت او علم او نور ګرد صفات محدود او مستعار دي؟ استغفر الله !.

قُل رَّبِّ إِمَّا تُرِيَنِّى مَا يُوعَدُونَ ﴿٩٣﴾ رَبِّ فَلَا تَجْعَلْنِى فِى ٱلْقَوْمِ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٩٤﴾

ووایه (ای محمده !) ای ربه ځما ! که چیرې وښیې ته ما ته هغه (عذاب) چې وعده یې کوله شي (له دوی سره). ای ربه ځما ! پس مه ګرځوه ما په قوم ظالمانو کې.

**تفسیر:** یعنې څرنګه چې د الله تعالی په دربار کې د کفّارو له خوا داسې ګستاخي او سپین سترګي تر سره کیږي؛ نو یقینًا کوم سخت عذاب به نازلیږي، نو ځکه هر مؤمن ته هدایت شوی دی چې د الله تعالی له عذابه وویریږي، او داسې

دعاوې وکړې: «اې الله تعالی ! کله چې پر ظالمانو عذاب نازلوې؛ ما په هغه کې مه شاملوه !»، لکه چې په حدیث کې راغلي دي: «وإذا أردت بقوم فتنة فتوفني غير مفتون»، مطلب دا چې: اې الله تعالی ! مونږ د ایمان او احسان په لاره کې مستقیم ولره، او داسې کوم تقصیر له مونږه صادروه مه چې «العیاذ بالله» ستا په عذاب کې شامل شو، په بل ځای کې داسې ارشاد دی: ﴿وَاتَّقُوا۟ فِتْنَةً لَّا تُصِيبَنَّ ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنكُمْ خَآصَّةً﴾ (۹ جزء د الأنفال (۲۵) آیت (۳) رکوع)، دلته یې رسول الله مبارک مخاطب ګرځولی دی، خو اصلي مقصد یې نورو ته اورول او پرې خبرول دي، لکه چې د دغه عظیم الشأن قرآن عمومي عادت دی.

وَإِنَّا عَلَىٰٓ أَن نُّرِيَكَ مَا نَعِدُهُمْ لَقَٰدِرُونَ ﴿٩٥﴾ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ ٱلسَّيِّئَةَ ۚ نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَصِفُونَ ﴿٩٦﴾

او بېشکه مونږ په دې کار چې وښیو تاته هغه عذاب چې وعده یې کوو له دوی سره خامخا قادر یو (لیکن مؤخر کوو یې حکمتًا ومصلحتًا). دفعه کړه (اې محمده !) په هغه خصلت سره چې هغه ډېر ښه دی بدي (او ضرر د دوی تاته)، مونږ ته ښه معلوم دی هغه ( خبرې) چې ستایي دوی (تا یا ما، نو ور به کړو پرې دوی ته جزاء).

تفسیر: یعني دغه څمونږ په قدرت کې دی چې ستاسې تر سترګو لاندې به همدغې دنیا کې هغوی ته سزا ورکړو، لیکن ستاسې د لوړ مقام او د لوړې مرتبې او اعلی اخلاق مقتضی داسې ده، چې د هغوی بدي په نېکۍ سره دفع کړئ !، تر هغه پورې چې د هغو د دفع امکان وي، او له دغسې چټي خبرو څخه خفه نشئ، مونږ ته د دوی ټول اعمال معلوم دي، او په ټاکلي وخت کې به هغوی ته کافي سزا ورکوله کیږي.

وَقُل رَّبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ هَمَزَٰتِ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴿٩٧﴾

او ووایه (اې محمده !) اې ربه څما پناه غواړم په تا پورې له چخولو (وسوسو) د شیطانانو نه (چې راکاږي خلق ضلالت ته).

تفسیر: یعني د شیاطین الانس سره د سلوک او ګزارې طریقه ښوولې شوې وه، لیکن شیاطین الجن په دغه طریقه سره نشو متأثر کېدلی، او هیڅ یو تدبیر او پوست وضعیت په هغوی اثر نشو غورځولی، او نه پرې سمبدل، د دوی علاج یوازې په استعاذه سره کیږي، یعني د الله تعالی په پناه کې ښایي چې سړی ورشي، څو هغه مطلق قادر د دوی د لاس اوږدولو او وسوسو څخه یې محفوظ کړي.

وَأَعُوذُ بِكَ رَبِّ أَن يَحْضُرُونِ ﴿٩٨﴾

او پناه غواړم په تا پورې اې ربه څما ! چې حاضر شي (دوی) ماته (په لمانځه یاتلاوت د قرآن یا په ځنکدن کې).

تفسیر: یعني په هیڅ یوه حال کې مې مه پرېږده چې شیطان ماته رانژدې شي، یا خپل وار او ګزار پر ما وکړي.

حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَحَدَهُمُ ٱلْمَوْتُ قَالَ رَبِّ ٱرْجِعُونِ ﴿٩٩﴾ لَعَلِّىٓ أَعْمَلُ صَٰلِحًا فِيمَا تَرَكْتُ ۚ كَلَّآ ۚ إِنَّهَا كَلِمَةٌ هُوَ قَآئِلُهَا ۖ وَمِن وَرَآئِهِم بَرْزَخٌ إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿١٠٠﴾

تر هغه پورې کله چې راشي یو د دوی ته (اسباب د) مرګ؛ نو وبه وایي: اې ربه څما ! بېرته وګرځوه ته ما (دنیا ته). ښایي چې زه عمل وکړم نېک په هغه څیز کې چې بېرته پرېښی دی ما

(په دنیا کې، نو فرمايي الله چې) نه دي داسې (چې ته بېرته دنیا ته وګرځېدی شي، ایمان او صالح عمل ته) بېشکه دغه د رجعت خبره داسې چټي (بېکاره) خبره ده چې دی ویونکی د هغې دی، او په مخ کې د دوی دی برزخ (پرده د قبر ده، چې يې نه پر بېردي رجوع ته) تر هغې ورځې پورې چې بیا ژوندي راپاڅولی کیږي.

**تفسير:** یعنې تاسې دغه د کفّارو بدي په ښه طریقه سره دفع کوئ ! او هغه خبرې چې دوی يې جوړوي؛ هغه مونږ ته راپرېږدئ !، تر هغه پورې چې د دوی د ځینو د موت وخت راشي، او د نزع په وخت کې د عذابونو مبادي معاینه کړي، او په افسوس او ارمان کولو شروع وکړي، او په هغه وخت کې داسې تمنّا وکړي چې ای الله ! د قبر د ورتللو په ځای ما پر بېرده چې بېرته دنیا ته لاړ شم !، او د خپلو تېرو تقصیراتو تلافي وکړم !، او څه نېک اعمال او د آخرت پانګه (سرمایه) ځان ته برابره کړم !، او وروسته له دې نه بیخي له ګناهونو او خطاوو او بدو چارو څخه لاس واخلم !، او بالکل ورنږدې نشم !، نو په دغه وخت کې به ای پروردګاره ! ستا لوی لطف او مهرباني وي، کما قال الله تعالی: ﴿وَأَنفِقُوا مِن مَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَا أَخَّرْتَنِي إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ الصَّالِحِينَ﴾ (۲۸ جزء، د المنافقون سورت (۲) رکوع (۱۰) آیت).

نو پاک الله به «ملائکة العذاب» ته وفرمايي چې: دغو منکرانو ته ووایئ: نه ده داسې چې ته به بېرته دنیا ته وګرځېدی شې لپاره د ایمان او د صالح عمل، بېشکه دغه کلمه د رجعت یوه داسې چټي (بېکاره) خبره ده چې دی ویونکی د هغې دی، یعنې د اجل د راتګ څخه وروسته د دغه مقصد لپاره له سره نه ستانه (واپس) کیږي، او که بالفرض ستانه هم کړل شي؛ نو دوی به بیا له سره صالحه اعمال ونه کړي، او بیا به په همغو ملاهیو او مناهیو کې مشغولیږي: ﴿بَلْ بَدَا لَهُم مَّا كَانُوا يُخْفُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ (۷ جزء د الأنعام سورت (۳) رکوع (۲۸) آیت).

فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ فَلَا أَنسَابَ بَيْنَهُمْ يَوْمَئِذٍ وَلَا يَتَسَاءَلُونَ ﴿۱۰۱﴾

نو کله چې پو کی وکړ شي په صور شپېلۍ کې (لپاره د قیام د قیامت)؛ پس نه به وي (نافع) نسبونه په منځ د دوی کې په دغه ورځ کې، او نه به پوښتنه کوي دوی یو له بله.

**تفسير:** یعنې د برزخ د عالم څخه وروسته قیامت ور په سر دریږي، د دویم صور (شپېلۍ) د پو کلو څخه وروسته ګرد مخلوقات به په یوه میدان کې سره راټولوي او درول کیږي، په دغه وخت کې به هر سړی پخپل فکر او اندېښنه کې لګیا وي، اولاد له موره پلاره سره، ورور له وروره سره، مېړه له ښځې سره، او خپل له خپلوانو سره څه کار او غرض نه لري، او هر یو به له بل څخه ناآشنا او بېزاره وي، هیڅوک به د بل پوښتنه نه کوي، لکه چې د «عبس» سورت په اوله رکوع کې مرقوم دي: ﴿يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ * وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ * وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ * لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ﴾، له دې نه وروسته امکان لري چې له ځینو قرابتونو او خپلوۍ څخه څه نفع وررسیږي، لکه څنګه چې الله تعالی د «الطور» سورت په لومړۍ رکوع کې فرمایلي دي: ﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُم بِإِيمَانٍ أَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَا أَلَتْنَاهُم مِّنْ عَمَلِهِم مِّن شَيْءٍ﴾.

**تنبیه:** په ځینو احادیثو کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: د قیامت په ورځ کې ګرد د «نسب» او «صهر» دا مادي تعلّقات منقطع کیږي، یعنې په کار نه ورځي «إلا نسبي وصهري» «علاوه ځما له نسب او صهره»، یا دا معنی چې دلته اوس په نسب فخر کوي، چې زه د هغه «شاه» او د دغه «خان» او د دې «صاحب» پلار یا ځوی یا ورور یا بل څه یم، او هلته به دې نسبت او دې سبب ته هیڅ یوه فائده نه وي، او به پوښتنه کوي دوی یو له بله د دې نسب او حسب، او دغه به په سبب د ډېرې مشغولتیا د دوی وي پخپل غم کې، او دغه به پخوا له حسابه وي، ځکه چې هلته به خلاصی په عمل وي لکه چې فرمايي:

فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٠٢﴾ وَمَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ فَأُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ فِي جَهَنَّمَ خَالِدُونَ ﴿١٠٣﴾ تَلْفَحُ وُجُوهَهُمُ النَّارُ وَهُمْ فِيهَا كَالِحُونَ ﴿١٠٤﴾

پس هر څوک چې درنې شي تلې (يا تللي شوي) عملونه د دوی (معتمد وګرځي په نزد د الله)؛ پس دغه کسان هم دوی دي بريالیان (کامیاب ـ له عذاب خلاص شوي په مراد رسیدلي). او هر هغه څوک چې سپک يې وختلي تلې (يا تللي اعمال) د ده (چې وزن نه کړي په نزد د الله)؛ پس دا هغه کسان دي چې زيان يې کړی دی د نفسونو خپلو (په کفر او عصيان سره، اوس دوی) په دوزخ کې به تل پراته وي. سوځوي مخونه د دوی اور (د دوزخ)، او دوی به دغه اور کې غونج وچولي (ګونجې تندي) (بدرنګه او بد مخي) به وي.

تفسير: د دوی بدن به له ډېرو سوځېدو څخه وپړسيږي، لاندنی شونډه به يې ښکته څوړنديږي، تر نامه پورې رسيږي، او پاسنی شونډه به يې تر ککرې هم ورپورته کيږي، او ژبه به يې (لکه د فيل شونډک) د باندې راووځي، او تر ځمکې به راوږديږي: (اللهم احفظنا منه، ومن سائر أنواع العذاب).

نو وبه ويلی شي په عُقبا کې له جانبه د الله تعالی هغو کسانو ته چې زيان يې کړی دی د خپل ځان:

أَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلَىٰ عَلَيْكُمْ فَكُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿١٠٥﴾

آيا نه وو آيتونه (د قرآن) ځما چې لوستل کېده پر تاسې (په دنيا کې)؛ پس وئ تاسې چې پر هغو به مو تکذيب کاوه (چې اوس لايق د دې د عذاب شوئ).

قَالُوا رَبَّنَا غَلَبَتْ عَلَيْنَا شِقْوَتُنَا وَكُنَّا قَوْمًا ضَالِّينَ ﴿١٠٦﴾ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْهَا فَإِنْ عُدْنَا فَإِنَّا ظَالِمُونَ ﴿١٠٧﴾

نو وبه وايي (کفّار) ای ربه ځمونږ! غالبه شوې وه پر مونږ بدبختي ځمونږ، او وو مونږ يو قوم ګمراهان (چې لاره د حق شيطان راڅخه ورکه کړې وه). ای ربه ځمونږ! (يو کرت) وباسه مونږ له دې دوزخه! پس که بيا راوګرځېدو مونږ (دې کفر ته)؛ پس بېشکه مونږ ظالمان يو (پر ځانونو خپلو باندې).

تفسير: يعني دوی به اعتراف کوي چې بېشکه مونږ د خپلې بدبختۍ او بدقسمتۍ لامله دلته لويدلي يو، او د هغې صافې سمې لارې څخه په لوی لاس کاږه شوي يو، او په خپلو پښو د دغه ابدي هلاکت په کنده کې لويدلي يو، اوس مو له دغه ځايه وباسه !، او بېرته مو دنيا ته ولېږه چې ښه عملونه وکړو، او له ګناه او خطا څخه بيخي لرې وګرځو، او که بيا هم مونږ ستا د احکامو څخه غاړه وغړوله؛ بيا هره سزا چې راکوې، مونږ ستا په واک او اختيار کې يو، حال دا چې د دوی دغه وينا هم خطا ده، او دوی په کې دروغجنان دي، او دا وروستنی کلام دی د دوزخيانو، چې پس له دې خبرې څخه امر د سکوت به ورته وشي، نو دغو کفّارو ته د «ملائكة العذاب» په ژبه د الله تعالی له جانبه داسې امر کيږي:

قَالَ اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ ﴿١٠٨﴾ إِنَّهُ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ ﴿١٠٩﴾

وبه فرمايي چې تاسې چپ شئ (پراته اوسئ خوار ذليل) په دې دوزخ کې او مه غږېږئ له ما سره (په دفع د عذاب کې). بېشکه شان دا دی چې وه يوه ډله له بندګانو ځما (يعني مؤمنان) چې ويل

دوی (تضرّعًا): ای ربه ځمونږه ! ایمان مو راوړی دی (په ټولو مؤمن به شیانو)؛ نو ښښنه وکړه مونږ ته (د ګناهونو ځمونږ)، او مهرباني راباندې وکړه، او ته (ای پروردګاره !) خیر ډېر غوره د ټولو مهرباني کوونکیو یې.

**تفسیر:** یعنې خوشې چټې (بېکاره) او چټوله (فضول) خبرې مه کوئ !، اوس هر هغه څه چې مو کړي دي؛ د هغه سزا وګالئ (برداشت کړئ) !، له آثارو څخه معلومېږي چې د دې الهي ځواب د صدور څخه وروسته بیا داسې نارې سورې منقطع کېږي، او دوزخیان غیر له «زفیر» او «شهیق» څخه به بل کلام نه شي کولی، العیاذ بالله.

فَاتَّخَذۡتُمُوهُمۡ سِخۡرِيًّا حَتَّىٰٓ أَنسَوۡكُمۡ ذِكۡرِي وَكُنتُم مِّنۡهُمۡ تَضۡحَكُونَ ۝١١٠

پس نیولي وو تاسې دوی مسخرې کړی شوي پر دوی، تر هغه پورې چې هېر کړ (مسلمانانو) له تاسې څخه ای کفّارو ذکر یاد ځما (په سبب د مشغولتیا د تاسې ای کفّارو په تمسخرو د مسلمانانو کې) او وئ تاسې چې په هغوی پورې مو خندل (هر وخت له ډېره کبره).

**تفسیر:** یعنې په دنیا کې کله چې مسلمانانو د خپل الله په حضور کې دعاء او استغفار کاوه؛ نو تاسې ورپورې ټوقې کولې، او دومره د هغوی په تحقیر او تکدیر پسې لویدلي وئ؛ چې پاک الله او د جزاء ورځ مو بیخي له یاده وتلې وه، او داسې مو ګڼل چې ګواکې ستاسې پر سرونو باندې له سره هیڅ یو حاکم او کتونکی نشته، چې ستاسې د داسې حرکاتو یاداشت واخلي، او د هغو سختو اعمالو سزا تاسې ته درکړي.

إِنِّي جَزَيۡتُهُمُ ٱلۡيَوۡمَ بِمَا صَبَرُوٓاْ أَنَّهُمۡ هُمُ ٱلۡفَآئِزُونَ ۝١١١

بېشکه زه چې یم جزا مې ورکړه دوی ته ښه جزا نن ورځ په سبب د هغه چې هغوی صبر کړی وو (په اضرار ستاسې)، بېشکه هغوی چې دي هم هغوی دي بریالیان (رسېدلي خپلو مقاصدو ته).

**تفسیر:** بېچاره ګانو مسلمانانو ستاسې پر قولي او فعلي ایذاوو او اضرارو صبر کړی وو، وګورئ چې نن ورځ ستاسې بالمقابل هغوی ته څه ثمره ور په برخه کېږي؟ او دوی داسې یو مقام ته رسولی شوي دي، چې هلته به پخپلو هر ډول مقاصدو بریالی او کامیاب او له هر قسمه لذائذو او مسرّاتو سره غاړه په غاړه وي.

قَٰلَ كَمۡ لَبِثۡتُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ عَدَدَ سِنِينَ ۝١١٢ قَالُواْ لَبِثۡنَا يَوۡمًا أَوۡ بَعۡضَ يَوۡمٖ فَسۡـَٔلِ ٱلۡعَآدِّينَ ۝١١٣

وبه فرمایي: څومره ځنډ (تأخیر) مو تېر کړی دی تاسې په ځمکه کې په شمار د کلونو؟ نو وبه وایي (کفّار): ځنډ (تأخیر) مو کړی دی یوه ورځ یا یوه برخه د ورځې، نو ته (پخپله) پوښتنه وکړه له حسابګرو څخه.

**تفسیر:** یعنې له پرښتو څخه چې هغوی هر قسم نیکۍ او بدۍ شمیرلي دي؛ دغه به یې هم شمېرلي وي چې «څومره ځنډ (وخت) مو تېر کړی دی په ځمکه کې، او څو مدّت مو هلته ژوند کړی دی»؟ یعنې په قبر کې یا د دنیا په ژوندون کې، دغه به هم هلته ډېر لږ په نظر راځي، دغه پوښتنه هم د دې لامله کېږي؛ چې په دنیا کې دوی عذاب ته ډېر زیات تلوار او عجلت کاوه، اوس وپوهېدل چې هغه ډېر په سرعت او جلتۍ سره وررورسېد (کذا في موضح القرآن).

قَٰلَ إِن لَّبِثۡتُمۡ إِلَّا قَلِيلٗاۖ لَّوۡ أَنَّكُمۡ كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۝١١٤

وبه فرمايي چې: نه دی ځنډ (تأخير) کړی تاسې (په دنيا کې) مګر لږ مدّت (په نسبت د عذاب د آخرت) که چېرې بېشکه تاسې يئ چې پوهېږئ (چې ژوند د دنيا د عُقبی په نسبت ډېر لږ دی).

تفسير: يعنې واقعي د دنيا عمر خو ډېر لږ وو، ليکن که تاسې پر دغه خبره په دنيا کې د انبياوو په خبرو باندې پوهېدئ؛ نو له سره په دغه فاني متاع به نه مغرورېدئ، او له انجام څخه به نه غافلېدئ، او هغه ګستاخي او شرارتونه به له تاسې څخه نه صادرېدل، چې د دنيوي زائلو او فاني لذتونو د مشغوليت او مصروفيت په ضمن کې له تاسې څخه په ظهور ورسېدل.

اَفَحَسِبۡتُمۡ اَنَّمَا خَلَقۡنٰكُمۡ عَبَثًا وَّاَنَّكُمۡ اِلَيۡنَا لَا تُرۡجَعُوۡنَ ﴿١١٥﴾

آيا پس ګمان کوئ تاسې داسې چې بېشکه خبره دا ده چې پيدا کړي مو يئ تاسې عبث (د لوبو لپاره)، او (داسې ګمان کوئ چې) بېشکه تاسې مونږ ته نه به راوستلی کېږئ (حساب او کتاب ته).

تفسير: داسې نه ده، تاسې عبادت ته پيدا شوي يئ، او رجوع کوونکي يئ ځمونږ دربار ته لپاره د مجازاتو، يعنې په دنيا کې د نېکۍ او د بدۍ پوره نتيجه نه دررسېږي، که په دې ژوندون پسې بل ژوندون نه وي؛ نو ګويا دغه ګرده کارخانه به محض يوه لوبه او تماشا او بېخي يوه بې نتيجې شی وي، حال دا چې د الله تعالی ذات له دې نه ډېر اعلی او ارفع دی، چې د هغه په نسبت داسې رکيک خيال وکړ شي.

فَتَعٰلَى اللّٰهُ الۡمَلِكُ الۡحَقُّ ۚ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ رَبُّ الۡعَرۡشِ الۡكَرِيۡمِ ﴿١١٦﴾

پس ډېر پورته لوی لوړ دی الله (له عبثياتو او نورو عيوبو څخه) مطلق باچا حق دی، نشته هيڅوک لايق د عبادت په رښتيا مګر خو همدی (يواځې) چې رب مالك د عرش کريم عزتناك دی.

وَمَنۡ يَّدۡعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ ۙ لَا بُرۡهَانَ لَهٗ بِهٖ ۙ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنۡدَ رَبِّهٖ ؕ اِنَّهٗ لَا يُفۡلِحُ الۡكٰفِرُوۡنَ ﴿١١٧﴾

او هر څوك چې بولي له الله سره معبود بل (چې د هغه عبادت هم کوي، هسې معبود چې) نه دی هيڅ برهان علمي سند ده ته په دغه (عبادت د غير)؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې حساب د دې (مشرك) په نزد د رب د ده دی (چې سم له استحقاقه يې ورکوي)، بېشکه شان دا دی چې بری نه مومي کافران (او نه خلاصيږي له عذابه).

تفسير: يعنې هلته به حساب او کتاب کيږي، او هر چا ته به د ده له جرمه سره سم سزا ورکوله کيږي.

د دغه سورت ابتداء په فلاح او نجات د مؤمنانو سره کړی شوې ده، او ختم په عدم فلاح د کافرانو سره داسې شوې ده، چې په پای (آخر) کې يې ځمونږ رسول الله صلی الله عليه وسلم په استغفار او استرحام هم مأمور ګرځولی دی.

وَقُلۡ رَّبِّ اغۡفِرۡ وَارۡحَمۡ وَاَنۡتَ خَيۡرُ الرّٰحِمِيۡنَ ﴿١١٨﴾ ع

او ووايه (ای محمده !) ای ربه ځما ! مغفرت او رحم وکړه (پر محمد او امّت يې)، او ته خير بهتره ډېر غوره د ټولو رحم کوونکيو يې.

**تفسير:** يعنې ځمونږ له تقصيراتو څخه راتېر شه ! او پخپل رحمت مو په دنيا او آخرت کې سرلوړي کړه ! ستا د بې نهايته رحمت په مقابل کې هيڅ شی مشکل نه دی.

تمّت سورة المؤمنون بفضله ومنّه و حسن توفيقه ونرجو منه إكمال بقية الفوائد.



# سُوْرَةُ النُّوْرِ

«د (النور) سورت مدني دی، (۶۴) آيتونه (۹) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۴) او په نزول کې (۱۰۲) سورت دی، وروسته د (الحشر) سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا وَاَنْزَلْنَا فِيْهَآ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ لَّعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ①

دا يو سورت دی چې نازل کړی دی مونږ دا، او فرض کړي دي مونږ (احکام د) هغه، او نازل کړي دي مونږ په دې (سورت) کې آيتونه ښکاره لپاره د دې چې تاسې (پرې) پند واخلئ، (او غور په کې وکړئ).

تفسیر: دغه سورت په ځینو نهایت ضروري احکامو، حدودو، امثالو، مواعظو، حقائقو، توحيد او په نورو اهمو تنبيهاتو او اصلاحاتو مشتمل دی، زياته ممتازه او پوهـه زياتوونکې برخه هغه ده، چې د (افک) له قصې سره تعلّق لري، پر اُمّ المؤمنين بي بي عائشي رضى الله عنها منافقينو د دروغو تهمت کړی، په هغه کې ځينې مخلص مسلمانان هم ښویېدلي وو، چې د هغه خطرناکه اثر نه یوائې د بي بي عائشي صديقې رضى الله عنها پر وضعيت لوېده؛ بلکه له یوه حیثیته پخپله د رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلّم د مجد او شرف تر درباره هم رسېده، نو ځکه ضرورت واقع شو، چې لوی قرآن په پوره اهتمام او قوّت سره د داسې خوفناکې غلط کارۍ يا غلط فهمۍ اصلاح وکړي، او د تل لپاره د ايماندارانو غوږونه پرانيځي، ځو وروسته له دې نه له سره د دښمنانو له تبليغاتو او انتشاراتو متأثر نشي، نو ځکه يې د دې سورت شروع په دغو الفاظو سره وفرمايله: ﴿سُوْرَةٌ اَنْزَلْنٰهَا وَفَرَضْنٰهَا﴾ الآية ـ څو مخاطبين وپوهيږي چې د ده مضامين ځان ته اهميت او يو خاص وقعت لري، او د ډېر محفوظ او ټينګ نيولو مستحق دي، او هغه صاف صاف نصائح چې په دغه سورت کې بيان شوي دي؛ هغه ګرد د دې وړ دي چې هر مسلمان ټينګ په خپل زړه کې ځای ورکړي، او تل يې په ياد ولري، او د يوې شېبې له مخې هم د ده د احکامو ځخه غفلت ونه کړي، که نه د دين او د دنيا په تباهۍ او خرابۍ کې اخته کيږي.

اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ

هغه ښځه چې زنا يې کړي وي، او هغه سړی چې زنا يې کړي وي (او محصنان نه وي، او ثبوت شي زنا پر دوی په اقرار يا په شهادت)، پس وهئ تاسو ای (قاضيانو او حاکمانو) هر يو له دغو دواړو سل دُرې.

تفسیر: دغه سزا د هغه زاني او زانيې ده چې آزاد عاقل او بالغ وي، او نکاح يې هم نه وي کړي، يا د نکاح ځخه وروسته جماع يې نه وي کړي.

او هغه چې آزاد نه وي؛ پنځوس دُرې وهل کيږي، د هغه حکم پنځمې پارې د اولې رکوع په آخر کې مذکور دی، او هغه چې عاقل او يا بالغ نه وي؛ نو دی خو لا نه دی مکلّف شوی، په هر هغه مسلمان کې چې دغه ګرد صفات

(حريت، عقل، نكاح ـ جماع) موجود وي؛ نو داسې شخص ته «محصن» وايي، نو د دغه محصن سزا چې د زنا مرتكب شي، او پرې شرعًا اثبات شي؛ «رجم» وو، يعني په ګټو ويشتل، او سنګساري ده، لكه چې د المائدې په سورت كې يې د تورات په حواله فرمايلي دي: ﴿وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِندَهُمُ التَّوْرَىٰةُ فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ﴾ الآية ـ او هغه حكم د الله رجم وو، لكه چې د هغه ځاى په تفاسيرو كې تېر شو، او رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه سره موافق فيصلې صادرې كړې وې، او فرمايلي يې وو: «اللهم إني أول من أحيا أمرك إذ أماتوه»، «اى الله ! زه هغه ړومبى سړى يم چې ستا هغه امر حكم مې ژوندى كړى دى چې محو او متروك كړى شوى وو»، بيا نه يوائې يهودان بلكه هومره داسې قسم واقعات چې وړاندې كېده؛ په هغو ټولو كې رسول الله صلى الله عليه وسلم تل محصن زاني ته په رجم سره سزا وركړې ده، وروسته د رسول الله صلى الله عليه وسلم له رحلته أصحابه الكرام هم پر همدغه احكامو د «رجم» اجراءات كول، بلكه د اهل السنّت والجماعت څخه يو سړي هم د ده پر مخالفت جرأت نه دى كړى، ګواكې متواتره سنّت او د اهل الحق اجماع دغه خبره رابنوولې ده، چې په دغه مسئله كې محمدي شريعت د تورات حكم باقي پرېښى دى، لكه چې لوى قرآن د عمد قتل په سزا كې وژل كېدل د تورات په حواله فرمايلي دي: ﴿وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ﴾ او د مرتدانو د قتل حكم بني اسرائيلو ته وركول د البقره په سورت كې بيان كړى شوى دى: ﴿فَتُوبُوا إِلَىٰ بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوا أَنفُسَكُمْ﴾ بيا هم دغه احكام د محمد صلى الله عليه وسلم د امّت په حق كې هم اېښود شوي دي، شايد د محصن رجم او د قصاص د مسئلې د نقل كولو څخه وروسته په هغه شدّت او تاكيد چې د ﴿بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ د حكم د ترك مذمّت او بدي يې بيان فرمايلې ده، او په آخر كې ارشاد شوى دى: ﴿وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُم بَيْنَهُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ﴾ الآية ـ له هغه به دا غرض وي چې د تورات دغه احكام اوس د قرآن تر حفاظت لاندې دي، چې د هغو په اجراء او انفاذ كې نه ښايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د هيڅا د اهواوو او آراوو لحاظ او پروا وكړي، لكه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په همدغه مورد كې د هيڅا څه پروا ونه كړه، او د دوى څخه وروسته راشدو خلفاوو «رضي الله تعالى عنهم أجمعين» هم د چا لحاظ او پروا ونه كړه، تر دې پورې چې عمر رضي الله عنه ته د محصن د «رجم» په نسبت دغه اندېښنه پيدا بلكه مكشوفه شوه، چې وروسته له دې نه به ځينې زائغين د دغه احكامو له تعميله انكار كوي، لكه چې خوارج او ځمونږ د زمانې يوې ممسوخې فرقې ترې انكار هم كړى دى؛ نو دوى په منبر وختل، او د صحابه وو او تابعينو په لويه مجمع كې يې د الله تعالى د دغه حكم اعلان په ډېر تأكيد او تشديد سره وفرمايه، او په دغه مورد كې بي د يو قرآني يو منسوخ التلاوت آيت حواله وركړه، چې په هغه كې د محصن د رجم صريح حكم موجود دى، او د هغه تلاوت وروسته منسوخ شوى دى، مګر حكم يې هم هغسې باقي پاتې دى.

تنبيه: د كوم آيت محض منسوخ التلاوت كېدل او حكم يې باقي پاتې كېدل يوه مستقله مسئله ده، چې تحقيق يې په دغو مختصرو فوائدو كې نشي درجېدى، ان شاء الله العزيز كه د مستقل تفسير د ليكلو وار راورسېد؛ نو هلته به وليكلى شي.

﴿وَلَا تَأْخُذْكُم بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۖ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝٢﴾

او نه دې نيسي تاسو لره په دغو (دواړو زناكارانو) زړه سوى (او مهرباني) په (انفاذ د) حكم د الله كې؛ كه يئ تاسې چې ټينګ يقين لرئ پر الله او په ورځې آخرې (د قيامت)، او حاضر دې شي عذاب كولو د دې دواړو ته يوه طائفه ډله له مؤمنانو څخه (چې فضاحت يې زيات شي).

تفسير: يعنې كه پر الله تعالى يقين لرئ؛ نو د هغه د احكامو او حدودو په اجراء او انفاذ كې هيڅ تقديم او تأخير مه كوئ !، داسې ونه كړئ چې د مجرم څخه وويرېږئ، او د سزا له اجراء څخه لاس وباسئ، يا په كې څه تنقيص وكړئ،

يا داسې غير مؤثرې خفيفې او معمولې سزاوې ورکړئ چې د سزا کيفيت په کې نه وي، ښه وپوهېږئ چې الله تعالى مطلق حکيم او له تاسې څخه زيات پر بندګانو مهربان دی، او د ده هر حکم کلك وي، که پوست؛ د عالم د مجموعې په حق کې له حکمت او رحمت څخه نشي عاري کېدی، که تاسې د ده د احکامو او حدودو په اجراء کې قصور کوئ؛ نو د آخرت په ورځ کې به ستاسې څخه پوښتنه کېږي.

﴿وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَآئِفَةٌ مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ «او حاضر دې شي عذاب کولو د دې دواړو ته ټولی له مؤمنانو»، يعنې دغه سزا دې ګوښې (بېله) ورته ورنه کړه شي !، بلکه د مسلمانانو په لويه مجمع کې دې ورته ورکړی شي، ځکه چې په هغه رسوايی کې د سزا تکميل او تشهير او کتونکو ته لوی پانيات او عبرت دی، او ښايي چې په کې دغه غرض هم وي چې دغه ليدونکي مسلمانان د ده پر حال باندې زړه وسوځي، او د مغفرت دعاوې ورته و کړي، والله أعلم.

﴿الزَّانِي لَا يَنكِحُ إِلَّا زَانِيَةً أَوْ مُشْرِكَةً وَالزَّانِيَةُ لَا يَنكِحُهَا إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ﴾

زنا کار سړی نه نکاح کوي (په رغبت محبّت سره) مګر خو زناکاره ښځه يا مشرکه ښځه، او زناکاره ښځه نه په نکاح کوي (دغې ښځې زانيې لره په رغبت او محبّت سره) مګر سړی زناکار يا سړی مشرك.

تفسير: د زنا د سزا د بيان کولو څخه وروسته د دې فعل انتهايي شناعت بيان فرمايي، يعنې هغه نارينه او ښځه چې په دغه شنيعه عادت مبتلا وي؛ په حقيقت کې د دې خبرې وړ او لايق نه دي چې له هغه سره د کوم عفيف مسلمان د ازدواج، د ناستې او ملاستې تعلق قائم کړ شي، د هغه د پليت طبيعت او ميلان سره خو دغه مناسب دي چې له همداسې بدکاره او تباه حاله نارينه او ښځې سره يا له دوی څخنې هم بدتره له کوم مشرك او مشرکې سره د هغه تعلّق وي، کما قال الله تعالى في هذه السورة: ﴿الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ﴾.

﴿وَحُرِّمَ ذَٰلِكَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ۝٣﴾

او حرامه کړی شوې ده دغه (زنا يا نکاح له بد کارو سره د حاصلولو د مبلغ لپاره) پر (صالحانو عفيفانو) مؤمنانو.

تفسير: يعنې يو مؤمن په داسې حال کې چې مؤمن وي؛ څرنګه به داسې حرکت ته اقدام کوي؟ په حديث کې راغلي دي: «لا يزني الزاني حين يزني وهو مؤمن»، يا دا مطلب چې له زانيې سره د هغو پرهېزګارانو د نکاح عقد حرام درولی شوی دی، چې په صحيح او حقيقي معاني سره د مؤمنانو د خطاب مستحقان دي، يعنې په تکويني ډول دغسې پاك او صاف نفوس د داسې خراب او پليت او ګنده ځايونو په طرف نه متمائل کيږي، او ترې ساتلي شوي دي، په دغه وخت کې به د ﴿وَحُرِّمَ﴾ معنى هم هغسې وي چې په: ﴿وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ﴾ کې، يا په ﴿وَحَرَامٌ عَلَىٰ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا﴾ کې نيولې شوې ده، والله أعلم.

﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ﴾

او هغه کسان چې وُولي محصنې ښځې (يا محصن سړي چې نسبت د زنا ورته و کړي)، بيا رانه ولي (په مخ د قاضي حاکم کې) څلور تنه شاهدان؛

تفسير: يعنې که په داسې پاك لمنې ښځې باندې د زنا تهمت ولګوي، چې د دې بدکارۍ په کوم دليل يا په شرعيه وو قرائنو سره نه وي ثابته؛ (نو ووهئ تاسې دغو قاذفانو لره ای قاضيانو او حاکمانو اتيا دُرې، او مه يې قبلوئ شاهدي ځکه

چې سره له حُرّيته بلوغ، عقل، اسلام او پاکي فاسقان دي)، او همدغه حکم دی د پرهېزګار نارينه که پرې تُهمت ولګاوه شي، لکه چې دغه آيات د يوې پاکې عفيفې صدّيقې ښځې په قصه کې نازل شوي دي، نو ځکه دلته د هم هغو پر ذکر اکتفاء شوې ده، که څلور شاهدان تېر کړي، او د هغوی شهادت سم له شرعيه وو اصولو سره مقبول واقع شي؛ نو پر هغه مقذوف او مقذوفه به د زنا حد جاري کيږي.

فَاجْلِدُوهُمْ ثَمٰنِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا ۚ

پس ووهئ تاسو (ای حاکمانو) دغه (قاذفان که اصيلان وي) اتيا دُرې، او مه قبلوئ تاسې له دوی نه شاهدي هيڅکله (تر وخته د مرګه پورې).

**تفسير:** دغه د «قاذف» تهمت لګونکي سزا شوه، چې د «مقذوف په مطالبه» اتيا دُرې وهل کيږي، او په مستقبل کې د تل لپاره په معاملاتو کې مردود الشهادت درولی کيږي.

وَأُولٰئِكَ هُمُ الْفٰسِقُونَ ۝٤

او دا (قاذفان) هم دوی دي فاسقان.

**تفسير:** يعنې که په واقع سره يې عمدًا په دروغو سره تهمت لګولی وو؛ بيا نو د ده فسق او نافرماني ظاهره ده، که په رښتيا سره واقعي خبره يې ويلې وي؛ ليکن په دې باندې پوهېده چې زه د څلورو تنو شاهدانو په شهادت خپله دغه دعوی نشم ثابتولی؛ نو د داسې خبرې له اظهاره غير له دې نه چې د يوه مسلمان پت او عزّت خراب کړي؛ بل څه ګټه (فائده) نه کوي چې هغه في نفسه مستقله ګناه ده، او علماؤ هغه په کبائرو کې شمېرلې ده.

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذٰلِكَ وَأَصْلَحُوا ۚ فَإِنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝٥

مګر هغه کسان چې توبه وباسي پس له دغه (قذفه له ګناه نه)، او اصلاح کړي (نيت او عمل خپل)؛ پس په تحقيق الله ښه مغفرت کوونکی (د خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** يعنې وروسته له توبې او د حال له اصلاحه؛ ښونکی پاک مهربان الله به دا د فاسق نوم ترې پورته کوي، او د الله تعالی په نافرمانو بندګانو کې به نه شمېرلی کيږي.

وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ

او هغه کسان چې وُولي ښځې خپلې (محصنې پاکې له زنا څخه په زنا سره).

**تفسير:** يعنې د زنا تهمت ولګوي، يا خپل د ووړکي په نسبت ووايي چې: دغه ځما له نطفې څخه نه دی.

وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الصّٰدِقِينَ ۝٦
وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللّٰهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِينَ ۝٧ وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ
شَهٰدٰتٍ بِاللّٰهِ ۙ إِنَّهُ لَمِنَ الْكٰذِبِينَ ۝٨ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللّٰهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِينَ ۝٩

حال دا چې نه وي دوی ته شاهدان (په دې کار د زنا کې) مګر نفسونه د دوی (يعنې پخپله حاضر وي)؛ پس (واجبه ده په دې کې) شاهدي د يوه د دوی څلور شاهدۍ په (نامه) د الله (په دې خبره

چې) بېشکه دی خامخا له صادقانو رښتیا ویونکیو دی (په دغه نسبت د زنا کې). او پنځمه (شاهدي) (داسې ده چې) بېشکه لعنت د الله دې وي پر دغه (مېړه) که وي (دی) له دروغجنانو څخه. او دفع کوي له دغې ښځې څخه عذاب (د حدّ ثابتیدل په وینا د مېړه یې) دا (کار) چې شاهدي ولولي (دا ښځه) څلور (واره) شاهدي (په نامه) د الله (په دې خبره چې) بېشکه دا مېړه څما خامخا له دروغ ویونکیو دی (په نسبت د زنا په ما باندې). او پنځمه (شاهدي داسې ده) چې ووایي: بېشکه غضب د الله دې وي په دې (ښځې) که چېرې وي (دا مېړه مې) له صادقانو رښتیا ویونکیو څخه.

تفسیر: یعني هر هغه مېړه (خاوند) چې پر خپلې ښځې د زنا تهمت ولګوي؛ اولاً: له ده نه به څلور شاهدان طلب کړه شي، که یې راحاضر کړي؛ نو پر ښځه دې د زنا حد جاري کړ شي، که یې شاهد نه شو حاضرولی؛ نو ده ته دې وویلی شي چې څلور ځلې دې په قسم یادولو سره بیان کړي چې زه په دغه تهمت کې چې مې پر خپله ښځه لګولی دی؛ دروغ نه وایم، ګواکې د څلورو شاهدانو په ځای پخپله د ده څلور (کرته) حلفیه شهادات دي، او په آخر کې په پنځمه مرتبه کې دغسې به وایي چې: «که دی پخپلې دغې دعوی کې دروغجن وي؛ نو پر ده دې د الله تعالی لعنت وي»، که د دغو پاس الفاظو د ویلو څخه انکار وکړي؛ نو د قذف په حدّ دې محکوم شي، چې پاس یې ذکر وشو.

که مېړه (خاوند) دغه الفاظ ووایي نو بیا ښځې ته دې وویل شي چې: هغه دې هم څلور ځلې په قسم یادولو سره داسې بیان وکړي چې: «مېړه (خاوند) مې په دغه تهمت لګولو کې دروغجن دی»، او پنځم ځلې دې دغه الفاظ ووایي چې: «د الله غضب دې نازل شي پر دې ښځه باندې؛ که یې دغه مېړه (خاوند) پخپله دغه دعوی کې رښتین وي»، تر څو که ښځه دغه الفاظ ونه وایي؛ نو د زنا حدّ به پرې جاري شي، یا په پاس مذکوره الفاظو سره یې تکذیب وکړي، که ښځه هم د خپل مېړه پشان دغه الفاظ ووایي، او له «لعان» څخه فراغت ومومي؛ نو بیا له دغې ښځې سره جماع او د جماع دواعي ګرد حرام شول، د دواړو په منځ کې سره ابدي تفریق واقع شو، نو دغه تفرّق د بائن طلاق حکم لري.

تنبیه: پر زوجینو باندې دا قسم الفاظو لولولو ته په شریعت کې «لعان» وایي، او «لعان» خاص په قذف الأزواج پورې مخصوص دی، د نورو محصناتو ښځو د «قذف» حکم هم هغه دی چې پاس مذکور شو.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ وَأَنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ حَكِيمٌ ﴿١٠﴾

او که نه وی فضل (احسان) د الله پر تاسې او رحمت د ده، او (بل دا نه وی چې) بېشکه الله ډېر توبه قبلوونکی لوی حکمت والا دی؛ (نو رسوا او معذّب شوي به وی په دنیا کې).

تفسیر: د «لولا» جواب محذوف دی، لکه چې څمونږ له ترجمې څخه ښکاریږي، چې که نه وی فضل او احسان د الله تعالی پر تاسو باندې؛ نو خامخا به یې شرمولي وی تاسو، یا ژر به یې په عذاب کړي وی تاسو، یعني که دغه د «لعان» حکم مشروع شوی نه وی؛ نو د «قذف» د عمومي قاعدې سره موافق به پر خاوند قذف اوښته، یا به یې ګرد عمر د خپل ځیګر وینې څښلې، او لړمون خوړینی به ناست وو، څکه ممکن دی چې دی رښتین وي، په خلاف د غیر د خاوند، چې هغه د دغسې اظهار لپاره مضطر نه دی، ځکه د هغه په قانون کې د دغو امورو رعایت ضروري نه دی، له بل لوري که یوائې د مېړه په قسم خوړلو د زنا ثبوت کېدی؛ نو د ښځې لپاره به ډېر سخت مصیبت او زحمت پېښېده، حال دا چې ممکن دی هغه رښتین هم وي، همداسې که ښځه د دې په قسم خوړلو سره یقیناً بریئه وګڼله شي؛ نو پر مېړه ه د قذف حد لازمېده، سره له دې چې د ده په صداقت کې مساوي احتمال موجود دی، نو په دغه حالت کې د «لعان» په مشروعیت کې د ټولو رعایت وشو، او همدغه د الله تعالی د فضل او رحمت اثر دی، ځکه چې په فریقینو کې هر یو چې رښتیین وي؛ هغه د بې محله سزا څخه نجات ومونده، په دغه وړې دنیا کې پرده پوښي کړی شو، او مهلت یې ورته ورکړی دی، چې ښایي توبه وباسي، بیا د ده د توبې قبلول دغه د الله تعالی د توابیت د صفت اثر شو.

إِنَّ الَّذِينَ جَاءُو بِالْإِفْكِ عُصْبَةٌ مِّنكُمْ ۚ لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم ۖ بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم مَّا اكْتَسَبَ مِنَ الْإِثْمِ ۚ وَالَّذِي تَوَلَّىٰ كِبْرَهُ مِنْهُمْ لَهُ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١﴾

بېشکه هغه کسان چې راوړي يې دي غټ دروغ (په شان د عائشې کې)؛ يو ټولی دی له تاسې (مسلمانانو) نه، ګمان مه کوئ په دې (دروغو) چې شر بد دي تاسې ته (ای مخلصانو مؤمنانو)، بلکه دغه (دروغ) خير دی تاسې ته (له جهته د ثواب او منقبت د تاسې)، مقرر دی هر سړي ته له دغو (بهتان ويونکيو جزاء د) هغه څيز چې ګټلی يې دی له ګناه (په قدر د خوض او شغل د ده)، او هغه څوک چې پورته يې کړ لوی بار پېټی د دغو (دروغو او شائع يې کړل) له دغه (ټولي) نه؛ شته ورته عذاب لوی (په دارينو کې).

تفسير: دلته د هغو غټو دروغو ذکر دی، چې پر صديقې بي بي عائشې رضي الله تعالی عنها تړلي شوي وو، دغه پېښه داسې وه، چې نبي کريم صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلّم د هجري په (۵) يا په (۶) کال کې د (بني المصطلق) له غزوې څخه د مدينې منورې په طرف بېرته تشريف راوړ، أم المؤمنين صدّيقه بي بي عائشه رضي الله تعالی عنها هم له دوی سره وه، بي بي صاحبه پر بل اوښ سوره وه چې پرې هودج (پالکی) تړلی او پردې به يې ځوړندې او ښکته به وې، په يو منزل کې چې د دوی قافله ښکته شوې وه؛ لږ شپه پخوا له کوچ صديقې بي بي عائشې ته د وضوء د تجديد ضرورت محسوس شو، نو ځکه له قافلې څخه څه قدر لرې لاړه، په دې ضمن کې يو ناڅاپه د دې د غاړې غاړکی (امېل) وشلېده، او دانې يې په شګو کې سره تيت و پرک شوې، نو د هغو په ټولولو او لټولو دا ډېره وځنډېده (ايساره شوه)، هلته قافلې کوچ وکړ، او له خپل ځايه ولېږېدله، او ګرد سره لاړل، جمّال هم داسې ګمان وکړ چې لکه بي بي صاحبه په هودج (پالکي) کې ناسته ده، ځکه چې د هغه ګردې پردې ښکته ځوړندې وې، او ذاتًا بي بي صاحبه په عمر کې هم وړوکې او په بدن کې هم ډېره ضعيفه او نحيفه وه، چې د دې د وجود او عدم وجود له هودج (پالکي) د باندې ښه نه څرګندېده.

الغرض جمّالانو خپل اوښان رهي او چالان کړل، او ګرد سره لاړل، کله چې أم المؤمنين بېرته راغله، ګوري چې قافله تللې ده، او هيڅ اثر او نښه يې هم نه ښکاري، نو أمّ المؤمنين په نهايت ثبات او استقامت سره دغسې رأيه قائمه کړه، چې اوس له دغه ځايه خوځېدل خلاف المصلحت دي، ولې که زه د دغو شګو په کړمونو کې د قافلې تعقيب هم وکړم؛ په هغوی پسې نشم رسېدی، او امکان لري چې لاره هم راڅخه ورکه شي، که دلته واوسېږم هر کله چې لمر وخيژي، او څما متعلقين په دې وپوهېږي چې زه په هودج کې نه يم؛ نو هرومرو به همدلته په منډه او ځغاسته راپسې راشي، نو همدلته پاتې شوه.

کله چې شپه وه، پر أم المؤمنين د خوب شومه راغله، همدلته يې خپل مبارک سر کېښود، کله چې صفوان بن مُعَطّل رضي الله تعالی عنه د رسول أکرم صلی الله عليه وسلم په امر مأمور وو، چې تل به دی وروسته له قافلې راځي، او د پاتې شويو شيانو خبر نيونه به کوي، نو ځکه دی تل د قافلې څخه په لږ فاصله لرې اوسېده، او همېشه د قافلې تر شا وروسته له پلټنې (تحقيق) به راته، صفوان بن مُعَطّل رضي الله تعالی عنه دغه ځای ته ګهيځ (سحر) راورسېد، او له لرې څخه يې وليد چې کوم اوده پروت دی، کله چې ورنژدې شو؛ نو د وريېچلي (نغښتلي) شوي ټکري (څادر) څخه يې وپېژنده چې دا خو څما مور أم المؤمنين صديقه بي بي عائشه ده، ځکه چې پخوا د حجاب د حکم له نزوله همدغه معنوي څوی او مور سره پېژندل.

صفوان بن مُعَطّل رضي الله تعالی عنه د دغه وضعيت د ليدلو څخه سخت ولړځېد، او ډېر وويرېد، او په زور يې ﴿إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ﴾ وويل، چې د هغه په اثر د أم المؤمنين رضي الله تعالی عنها ستر ګې خلاصې شوې، او هم هغسې مخ پېچلې (پټ مخ) او په خپل ټکري کې تاو شوې کېناسته.

صفوان بن مُعَطّل رضي الله تعالى عنه خپل اوښ أم المؤمنين رضي الله تعالى عنها ته نژدې چو کړ، او أم المؤمنين رضي الله تعالى عنها هم هغسې پټه پرې سوره شوه، اوصفوان رضي الله تعالى عنه د اوښ مهار پر خپله اوږه باندې کېښود، او د قافلې تر شا روان او ورسره ګډه شول.

رأس المنافقين و امام المكذبين عبد الله بن أُبَيّ چې د منافقانو مشر وو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم دښمن وو، دلته چې داسې يوه خبره او موضوع ورپيدا شوه؛ نو په چټې خبرو يې خوله وسپړدله، او ځينې ساده مسلمانان مثلاً په نارينه وو کې حسان، مِسطح، او په ښځو کې حمنه بنت جحش رضي الله تعالى عنهم أجمعين د منافقانو په دغه انتشاراتو او ګمراه کوونکيو خبرو تېروتل، او په دغسې افسوسناکو تذکرو کې سره لګيا شول، چې د هغو ويل دوی ته نه وو لازم، او د أمّ المؤمنين رضي الله تعالى عنها د عفّت او عصمت سره بيخي منافي وو، مسلمانانو ته بالعموم او پخپله رسول أكرم الله صلى الله عليه وسلم ته له داسې قسم واهياتو خبرو څخه سخته صدمه ورسېده، تر يوې مياشتې پورې دغسې چټې خبرې سره کېدې، او رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه أجمعين به هم دغه ګردې خبرې اورېدې، او هيڅ به يې نه ويل، او نه د هغو په تحقيق پسې ګرځېده، مګر په زړه کې سخت خفه وو، وروسته له يوې مياشتې پخپله أم المؤمنين عائشه صديقه رضي الله تعالى عنها هم له دغه شهرت څخه خبره شوه، نو د غم له شدّته ناقراره شوه، او د رنځورۍ په بستره کې ولوېده، شپه او ورځ به يې ژړل، او د يوې شپې له مخې به يې هم اوښکې نه درېدې، په دغه ضمن کې نور واقعات هم پېښ شول، او ډېرې خبرې اترې سره کېدلې، چې په صحيح بخاري شريف او نورو کې د لوستلو قابل دي، او بالآخر أمّ المؤمنين صديقې رضي الله تعالى عنها په برائت کې الله تعالى دغه آيت: ﴿إِنَّ الَّذِينَ جَآءُو بِالْإِفْكِ﴾ الآية ـ تر لرې ځايه پورې نازل وفرمايه، چې أم المؤمنين عائشې صديقې رضي الله تعالى عنها تل فخر پرې کاوه، او بالحق چې پر دغه هومره فخر او وياړ چې وکړي؛ لږ دی.

﴿عُصْبَةٌ مِّنكُمْ﴾ الآية ـ «يو ټولی دی له تاسو مسلمانانو څخه»، يعنې دغه دروغ تړونکي له خيره سره همغه کسان دي چې په دروغو يا په رښتيا سره د اسلام مدّعيان دي، خو بيا هم د الله تعالى لوی احسان دی، چې ګرد مسلمانان په دغه لومه کې نه دي نښتي.

﴿لَا تَحْسَبُوهُ شَرًّا لَّكُم بَلْ هُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ﴾ الآية ـ دغه خطاب د هغو مسلمانانو د تسلی لپاره دی، چې هغوی ته له دغې واقعې څخه صدمه رسېدلې وه، بالخصوص صديقې بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها او د دې کورنۍ ته، ځکه ظاهر دی چې هغه ډېره سخته خفه او ويرجنه وه، يعنې اګر که په ښکاره ډول دغه ويناوې ډېرې مکروهې خفه کوونکې او خرابې دي؛ ليکن في الحقيقت تاسې ته د ده په منځ کې ډېره بهتري او محاسن پټ وه، آيا دومره مدّت د تاسې پر داسې زړه خوږوونکو حملو او ايذاوو صبر کول هم داسې بې اجره پاتې کيږي؟ آيا دغه لږ فخر او شرف دی چې بالذات خالق الكائنات پخپل پاک کلام کې ستاسې نزاهت او برائت نازل کړ؟، او ستاسې دښمنان يې خواروزار او رسوا کړل، او تر قيامت پورې يې ستاسې د خير ذکر د ګردو قرآن لوستونکيو پر ژبه جاري کړ، او مسلمانانو ته يې د رسول الله صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلّم او د ده د ازواجو او اهل البيت د حق پېژندلو لپاره داسې يو درس ورکړ؛ چې له سره هېرېدونکی نه دی، فلله الحمدُ والشكرُ على ذلك، ﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُم﴾ مقرره ده هر سړي ته له دغو بهتان ويونکو جزا د هغه چې ګټلې يې ده له ګناه او هغه څوک چې پورته يې کړې لوي بار ددغه دروغو ورته شته عذاب لوي، يعنې هر هغه سړي چې په دغه فتنه کې هومره حصه واخيسته هم هغه قدر ګناه يې د خپل ځان لپاره وګټله او د هغې سزا مستحق شو، او ددی ګناه ډېر لوی بار اخيستونکی رأس المنافقين عبد الله بن أبی وو چې دده له لپاره په اخرت کې ډېر لوي عذاب دي او په دنيا کې هم ډېر ذليل او رسوا شو.

لَوْلَآ اِذْ سَمِعْتُمُوْهُ ظَنَّ الْمُؤْمِنُوْنَ وَالْمُؤْمِنٰتُ بِاَنْفُسِهِمْ خَيْرًا ۙ وَّقَالُوْا هٰذَآ اِفْكٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۲﴾

ولې نه په هغه وخت کې چې واورېده تاسې دا خبره؛ ګمان کاوه ايماندارو سړيو او ايمان دارو ښځو په نفسونو خپلو (پخپلو منځونو) کې د خير (خبرې) او ويلې وی (دوی ټولو داسې) دا خبره دروغ ده ښکاره.

تفسير: يعنې مسلمانانو ته ښايي چې له خپلو مسلمانانو ورونو خويندو سره حسن ظن ولري، او هر کله چې واوري چې خلق پر يو نېک سړي همداسې بدې خبرې او خراب تهمتونه لګوي؛ نو ښايي چې دی داسې خيالاتو ته پخپل زړه کې لار ور نه کړي، بلکه د هغو تکذيب دې وکړي !، رسول کريم صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلّم فرمايلي دي: «هر څوک چې پشي شا د خپل يوه مسلمان ورور مدد وکړي؛ نو الله تعالی هم د ده پشي شا مدد کوي».

لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ ۚ فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿۱۳﴾

ولې نه راوسته (او تېر نه کړ دوی) په دې خبرو څلور شاهدان (چې شاهدي ورکړي په دې قذف د دوی)، پس کله يې چې رانه وستل څلور شاهدان؛ پس دغه کسان په نزد د الله کې همدوی دروغجنان دي.

تفسير: يعنې سم د الله تعالی له حکمه او د ده د شريعت سره موافقه دغسې خلق دروغجنان درولي شوي دي، چې په بل چا باندې تهمتونه لګوي، او بيا د هغه د اثبات لپاره څلور شاهدان نشي وړاندې کولی، او بې له کافي ثبوته داسې غټې خبرې له خپلې ژبې څخه وباسي، او چټي (بېکاره) پرې وګرېږي.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ لَمَسَّكُمْ فِىْ مَآ اَفَضْتُمْ فِيْهِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۴﴾

او که نه وی فضل احسان د الله پر تاسې او رحمت د دغه (الله پر تاسې) په دنيا کې (په توفيق د توبې سره)، او په آخرت کې (په عفو او مغفرت سره)؛ نو خامخا رسېدلی به وو تاسې ته په هغه دروغ کې چې غوپې وهلې تاسې په هغو (دروغو) کې عذاب لوی (په همدغې دنيا کې).

تفسير: يعنې الله تعالی دوی ته د خپل فضل او کرم له امله له عذابونو څخه نجات ورکړ، که نه دغه خبره د عذاب لايقه وه.

اِذْ تَلَقَّوْنَهٗ بِاَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِكُمْ مَّا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ وَّتَحْسَبُوْنَهٗ هَيِّنًا ۖ وَّهُوَ عِنْدَ اللّٰهِ عَظِيْمٌ ﴿۱۵﴾

کله چې واخيست تاسو دا (افک) په ژبو خپلو (چې يو له بله مو پوښتنه کوله)، او ويله به مو په خولو خپلو سره هغه خبره چې نه وو تاسو ته په هغې باندې هيڅ علم، او ګڼله تاسې دغه خبره آسانه (چې هيڅ ګناه په کې نشته)، حال دا چې دغه (خبره) په نزد د الله کې ډېره لويه ده (له حيثيته د ګناه نه ).

تفسير: يعنې د عظيم عذاب مستحق ولې نه کېدل، کله چې تاسې بې تحقيقه يو ظاهر البطلان خبره يو د بل له خولې څخه اخيستله، او له خپلو ژبو څخه يې دغه چټي (بېکاره) اوټکلي خبرې ايستلې، چې د هغو له واقعيت څخه تاسې بيخي نه وئ خبر، بيا عجيبه خبره لا دا ده چې داسې سخته خبره (يعنې کومه محصنه خصوصًا د نبي عليه السلام مطهره زوجه او څمونږ د مسلمانانو روحاني والده متهم کول) چې د الله تعالی په نزد ډېر لوی دروند جرم دی؛ يوه وړوکې او معمولې خبره ګڼل له دغه اصلي جرم څخه لوی جرم دی.

وَلَوْلَآ إِذْ سَمِعْتُمُوهُ قُلْتُم مَّا يَكُونُ لَنَآ أَن نَّتَكَلَّمَ بِهَٰذَا سُبْحَٰنَكَ هَٰذَا بُهْتَٰنٌ عَظِيمٌ ﴿١٦﴾

ولې نه كله چې واورېده تاسې دا خبره؛ چې ويلي وئ تاسې نه ښايي مونږ ته دا كار چې خوله وخوځوو په دې خبره باندې، پاكي ده تاته اى ربه، دا دروغ دي ډېر لوى (چې تړلي شوي دي د منافقانو له خوا).

تفسير: اول خو د حسن الظن اقتضاء داسى وه چې ستاسو په زړونو كې هم ښايي دغه خبرې نه تېرېدى لكه چې پاس ارشاد وشو، ليكن كه د شيطاني اغواء له سببه يې فرض كړئ د چا په زړه كې كومه بده وسوسه تېره شي، يا يې له چا نه واورې؛ نو بيا جائز نه دي چې داسې ناپاكه خبره پر خپله ژبه راوړي، لازم دي چې په هسې مواردو مؤمن خپل حيثيت او ديانت ملحوظ ولري، او په صافو الفاظو سره داسې ووايي، چې د داسې بې سرو پښو خبرې له خپلې ژبې څخه ايستل ماته نه ښايي، او نه زه پرې ښه ښكارم.

يَعِظُكُمُ ٱللَّهُ أَن تَعُودُوا۟ لِمِثْلِهِۦٓ أَبَدًا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧﴾

پند دركوي تاسې ته الله (او منع كوي مو) چې بيا ونه ګرځئ تاسې مثل د دې خبرې ته هيڅكله، كه چېرې يئ تاسې مؤمنان (نو پرې عبرت واخلئ !).

تفسير: يعني مؤمنانو ته ښايي چې په پوره ډول سره پوهان او هوښياران شي، څو د بد باطنو منافقانو په چلونو او فرېبونو سره ونه غولېږي، او د دوى په پلمو (تدبيرونو) سره تېر نه وځي، او تل تر تله د نبي صلى الله عليه وعلى آله وصحبه وسلّم او د ده د اهل بيتو د عظمت شان ملحوظ ولري.

وَيُبَيِّنُ ٱللَّهُ لَكُمُ ٱلْءَايَٰتِ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿١٨﴾

او بيانوي الله تاسې ته آيتونه (د پند)، او الله ښه علم والا دى، ښه حكمت والا دى.

تفسير: يعنې د دغې خبرې پته دربښيي چې دغه غټ دروغ چا جوړ كړي؟ او خپور (مشهور) كړي دي؟، معلوم شو چې منافقانو تل په پټه دښمني او مخالفت كاوه، په پخواني آيت كې يې دغه خبره راښكاره كړې وه (كذا في الموضح).

إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ ٱلْفَٰحِشَةُ فِى ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٩﴾

بېشكه هغه كسان چې خوښوي دغه (خبره) چې خوره شي فاحشه بدنامي په حق د هغو كسانو كې چې ايمان يې راوړى دى؛ شته دغو (كسانو) ته عذاب دردناك په دنيا كې (په حدّ د قذف او په بدنامي سره)، او په آخرت كې (په اور د دوزخ سره)، او الله ښه عالم دى، او تاسې نه پوهېږئ (پر ضرر د هغې خورې كړې فاحشې).

تفسير: يعني بدكاري خوره او شائع شي، يا د بدكارۍ اطلاعات او خبرې منتشرې او خورې شي، دغسې غوښتونكي منافقان وو، ليكن د هغوى په تذكره كولو كې يې مؤمنانو ته هم تنبيه وفرمايله، چې فرض يې كړئ ! كه د چا په زړه كې د كومې بدې خبرې خطره تېره شوې وي، او په بې پروايۍ سره يې كومه خبره له ژبې هم وتلې وي؛ نو ښايي چې بيا د هغې مهملې خبرې تذكره له سره ونه كړي، او د هغې په تشيع او تنشير (اشاعت) پسې ونه ګرځي، كه خامخا د كوم مؤمن پت او عزت توېوي؛ نو ښه دې وپوهېږي چې د هغه پت او عزت هم محفوظ نه پاتې كېږي، او حق تعالى

هغه ذليل او خواروي، كما في حديث الامام أحمد رحمه الله ، په دې شان سره چې په دنيا کې د قذف حد پرې اجراء کيږي، او نورې رسوايي او سزاوې هم وررسيږي، او په آخرت کې د دوزخ سزا دوی ته تیاه او مهيئه ده، او الله تعالى ته داسې فتنه اچوونکي ښه معلوم دي، او ښه يې پيژني، اګر که تاسې يې نه پيژنئ، او دغه هم د پاک الله په علم کې شته چې د کوم يوه جرم او ګناه څومره ده؟ او غرض او مقصد يې څه وو؟.

تنبيه: د فاحشې د شيوع حب د حسد او کيني او نورو په شان د قلبيه وو اعمالو څخه دی، او د وسوسو او خواطرو په شان نه دی، او د قصد له مراتبو څخه نه دی، نو ځکه د هغه په مأخوذيت کې نه ښايي چې اختلاف وکړی شي !، فتنبّه له.

وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ وَاَنَّ اللّٰهَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٠﴾

او که نه وی فضل احسان د الله پر تاسې باندې او رحمت مهرباني د ده، او (دا نه وی) چې بېشکه الله ښه نرمي کوونکی ښه رحم کوونکی دی؛ (نو رسوا او معذب شوي به وی په دنيا کې).

تفسير: يعنې دغه غټ دروغ خو داسې تړلي او خواره شوي وو، چې نه وو معلوم چې څومره کسان له هغه ځنې جاربدل، ليکن الله تعالى محض پخپل فضل، رحمت، شفقت او مهرباني له تاسې ځنې دتائبينو توبه قبوله کړه، او پر ځينو يې شرعي حد جاري کړ، او پاک يې وګرځول، او هغه ته يې چې زيات خبيث وو؛ يو ډول (طريقه) مُهلت ورکړ، او په آخرت کې به جزاء وررسيږي.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّبِعُوْا خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ ؕ وَمَنْ يَّتَّبِعْ خُطُوٰتِ الشَّيْطٰنِ فَاِنَّهٗ يَاْمُرُ بِالْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ مَا زَكٰى مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ اَبَدًا ۙ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢١﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) متابعت مه کوئ د ګامونو د شيطان !، او هر چا چې متابعت وکړ د ګامونو د شيطان؛ نو بېشکه دغه شيطان امر کوي (تابع خپل ته) په فحشاء ډېرو بدو قبيحو کارونو، او په منکر نامشروعو بدو خبرو، او که نه وی فضل احسان د الله پر تاسې، او رحمت د ده؛ نو نه به وئ پاک کړي له (معصيت د افک څخه الله) تاسې هيڅوک هيڅکله، وليکن الله پاکوي (په قبول د توبې سره له معاصيو) هر هغه څوک چې اراده وفرمايي (د پاکی يې)، او الله ښه اورېدونکی (د اقوالو) ښه عالم دی (په نياتو).

تفسير: يعنې د شيطان له چالونو او پلمو (تدبيرونو) څخه هوښيار اوسئ !، نه ښايي چې د مسلمان کار داسې وي چې شياطين الجن والانس سره قدم په قدم يو ځای لاړ شي، د هغو ملعونانو د ټولنې مقصود خو همدا دی، چې خلقو ته د بې حيايي او رسوايي په طرف دعوت او بلنه ورکړي، نو تاسې ولې په رڼو سترګو عمداً د هغوی پر خبرو غولېږئ؟، وګورئ چې شيطان لږ څه تحريک او ډکه ورکړې؛ دومره لوی شورماشور او هنګامه پورته کوي، او ډېر سم ساده مسلمانان په اشتباه سره د هغه پر قدمونو روانيږي، حال دا چې شيطان خو د ګردو ګمراه کول غواړي، او يو تن هم نه پرېږدي چې پر سمه لاره لاړ شي، دا خو د الله تعالى فضل او رحمت دی چې دی د خپلو مخلصو بندګانو لاس نيوی کوي، او زيات کسان يې له شيطان له شرونو څخه ژغوري.

وَلَا يَاْتَلِ اُولُوا الْفَضْلِ مِنْكُمْ وَالسَّعَةِ اَنْ يُّؤْتُوْۤا اُولِى الْقُرْبٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا ؕ اَلَا تُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٢٢﴾

او قسم دې نه کوي خاوندان د فضل (په دين کې) له تاسې او (خاوندان) د پراخۍ (او مالدارۍ ستاسې په دنيا کې) په دې چې نفقه او صدقې به نه ورکوي خاوندانو د خپلوۍ او مسکينانو او

مهاجرينو ته په لاره د الله کې، او ښايي چې عفوه دې وکړي، او ښايي چې ترې تېر دې شي، آيا دوست نه لرئ تاسې دا چې مغفرت وکړي الله تاسي ته (په سبب د عفوې او صفح د تاسې)؟ او الله ښه مغفرت کوونکی (د خطياتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** پر صديقې بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها باندې په بهتان تړونکيو کې ځينې مسلمانان هم په ناپوهۍ سره شامل شوي وو، چې له هغوی ځنې يو مسطح رضي الله تعالى عنه وو، چې برسېره په دې چې يو غريب مهاجر وو، د أبو بکر الصديق رضي الله عنه خوريي يا تروريځی هم کېده، او د «افک» د پېښې ځخه پخوا صديق أکبر رضي الله تعالى عنه د هغه سره امداد او مالي مرسته کوله، کله چې دغه خبره سره فيصله شوه، او د صديقې بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها برائت د الله تعالى له طرفه نازل شو؛ نو أبو بکر الصديق رضي الله عنه قسم وکړ چې وروسته له دې نه به مسطح رضي الله عنه سره هيڅ امداد او کومک ونه کړم، ممکن دی چې ځينو نورو اصحابو ته به هم داسې پېښې وړپېښې شوي وي، نو په دغه تقريب دا آيت نازل شو، يعنې له تاسې ځينې هغو کسانو ته چې الله تعالى ديني کرامت او مشرتوب يا دنيايي وسعت اومالداري ورکړې ده، دوی ته نه ښايي چې داسې قسمونه وخوري !، او ښايي چې د دوی همّت ډېر لوی او اخلاق يې لوړ او عالي وي، نو مېړانه (بهادري) او ځلميتوب په دې کې دی چې د بدۍ بدل په نېکۍ سره ورکړ شي.

په احاديثو کې دي، کله چې أبو بکر الصديق رضي الله عنه دغه آيت واورېد: ﴿أَلَا تُحِبُّونَ أَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ﴾ الآية ـ «آيا دغه مو نه خوښېږي چې الله تعالى مو وبښي»؛ نو فورًا يې وويل: «بلى ! يا ربنا إننا نُحبُّ»، «بېشکه ای ځمونږ پروردګاره ! مونږ هرومرو (خامخا) ستا ښښه خوښوو، او غواړو يې»، دا يې وفرمايل، او د مسطح رضي الله عنه هغه پخوانی کلنګ او امداد يې بېرته جاري کړ، بلکه په ځينو رواياتو کې راغلي دي، چې د پخوا په نسبت يې دوچند کړ، رضي الله تعالى عنه وأرضاه.

﴿إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ لُعِنُوا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾﴾

بېشکه هغه کسان چې وُولي دوی (په نسبت د زنا سره) ښځې پاکې عفيفې ناخبرې (له دغو بدو)، ايمان راوړونکې (په الله او رسول)؛ لعنت کړی شوی دی په دوی باندې په دنيا کې او په آخرت کې، او شته دوی ته عذاب ډېر لوی.

**تفسير:** په صحيحينو کې حديث دی: «اجتنبوا السبع الموبقات ! الشرک بالله، والسحر، وقتل النفس التي حرم الله إلا بالحق، وأکل الربا، وأکل مال اليتيم، والتولّي يوم الزّحف، وقذف المحصنات الغافلات المؤمنات» له دې نه ظاهرېږي چې د محصناتو قذف مطلقًا له مهلکاتو ځخه دی، بيا په هغه کې ازواج مطهّرات بالخصوص د أم المؤمنين بي بي عائشې صديقې رضي الله تعالى عنها قذف خو ډېره لويه ګناه ده، علماوو تصريح فرمايلې ده، چې وروسته د دغو آيتونو له نزوله هر ځوک چې بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها يا له ازواج المطهّرات ځخه يو تن متّهم کړي؛ هغه کافر او د قرآن مکذّب، او د اسلام له دائرې ځخه خارج دی، د «طبراني» په يوه حديث کې راغلي دي: «قذف المحصنة يهدم عمل مائة سنة»، «پر محصنې باندې تهمت لګول د سلو کلونو عمل ورانوي»، (العياذ بالله).

﴿يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٢٤﴾﴾

په هغه ورځ کې چې شاهدي به ورکړي پر دوی باندې ژبې د دوی، او لاسونه د دوی، او پښې د دوی پر هغو (افعالو او اقوالو) چې وو دوی چې کول به يې په دنيا کې.

تفسير: يعنې مجرم په خپله خوله او ژبه سره د هغو ويل او اظهار نه غواړي، مګر د ده ژبه، لاسونه، پښې به په «اذن الله» په وينا راځي، او له هغو څخه هر عضوه به هر هغه عمل څرګندوي چې د هغو په وسيله شوی وي.

لطيفه: قاذف پخپله په ژبه تهمت لګولی وو، او د څلورو تنو شاهدانو مطالبه له هغه څخه شوې وه، چې هغه يې پوره نشوه کړی، بالمقابل د هغه دلته د پنځو شيانو ذکر وشو، ژبه چې د قذف اصلي آله ده، او څلور نور لاسونه او پښې چې د هغه پر شرارت باندې شاهدي لولي.

يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللَّهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ ﴿٢٥﴾

په دغه ورځ کې به پوره ورکړي دوی ته الله جزاء د دوی هغه چې حقه لائقه وي، او پوه به شي چې بېشکه الله همدی دی حق ثابت (په ذات او صفات خپل)، ښکاره ظاهر (په الوهيت او ربوبيت خپل).

تفسير: هغه ذات چې د يوې ذرې اعمال حساب کتاب په ښکاره او واضح ډول سره هر سړي ته په صاف صورت سره ښکاره کوي، او د هغه په دربار کې هيڅ ظلم او تعدّي نه کيږي، دغه مضمون به د قيامت په ورځ ګردو ته مکشوف او مشهود يږي.

الْخَبِيثَاتُ لِلْخَبِيثِينَ وَالْخَبِيثُونَ لِلْخَبِيثَاتِ وَالطَّيِّبَاتُ لِلطَّيِّبِينَ وَالطَّيِّبُونَ لِلطَّيِّبَاتِ أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿٢٦﴾

ناپاکې (ښځې او خبرې) لپاره د ناپاکو دي، او ناپاکه (خلق) لپاره د ناپاکو (ښځو او خبرو) دي، او پاکې (ښځې او خبرې) د پاکو (خلقو) دي، او پاک (خلق) لپاره د پاکو (ښځو او خبرو) دي، دغه (پاکان چې ځينې له هغو اهل البيت دي؛) پاک (بې تعلقه بېزاره) دي له هغو خبرو چې وايي يې (دروغجنان)، شته دوی ته مغفرت بښنه او رزق روزي ښه (په جنّت کې).

تفسير: يعنې بدکارې او چټې (بېکاره) ښځې د بدکارو او چټلو (خرابو) سړيو وړ او لايقې دي، همداسې يو بدکار او ګنده سړی د همدې خبرې سره وړ او لايق دی، چې د هغه تعلّق د هم هغه په شان چټلې (خرابې) او بدکارې ښځې سره وي، پاک او ستره او مطهر انسانان له ناپاکانو سره هيڅ تعلّق او مطلب نه لري، ابن عبّاس رضي الله تعالی عنهما فرمايلي دي چې: «د نبي کريم صلی الله عليه وسلم ښځه له سره بدکاره (زانيه) نه وي»، يعنې الله تعالی د هغه د ناموس حفاظت هم فرمايي، نقله في (موضح القرآن).

تنبيه: د آيت دغه مطلب خو د شيخ الهند د ترجمې سره سم وشو، مګر د اسلافو د ځينو مفسرينو څخه دغه منقول دي، چې د ﴿الْخَبِيثَاتُ﴾ او د ﴿الطَّيِّبَاتُ﴾ څخه دلته ښځې نه دي مرادې، بلکه اقوال او کلمات مراد دي، يعنې خرابې خبرې خرابو خلقو سره لايقې او مناسبې دي، او پاکې او صافې خبرې پاکو او صافو سړيو سره لازمې او مناسبې دي، متقي، پاک او صاف نارينه او ښځې له داسې ګنده او مردارو تهمتونو څخه پاکې وي، لکه چې وړاندې له ﴿أُولَٰئِكَ مُبَرَّءُونَ مِمَّا يَقُولُونَ﴾ څخه ظاهريږي، يا دې داسې وويلی شي چې: خرابې خبرې د خرابو له خولو څخ ووځي، هغه کسان چې د يوه پاک، متقي او مطهر انسان په نسبت کومه مرداره او خرابه خبره وکړي؛ نو وپوهېږه چې هغه پخپله خبيث او مردار دی، يعنې طيّب، طاهر او پاک سړی له داسې خبيثو او مردارو او چټلو (خرابو) خبرو څخه بيخي پاک او مُبرّأ دی، او هسې خرابې ويناوې د خبثاوو، پليتو، چټلو او ګنده کسانو کار دی، ﴿لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ﴾ شته دوی ته مغفرت او رزق روزي ښه په جنت کې يعنې هغوی ددوی په بدو ويلو سره نه بديږی بلکه هر کله چې دوی په هغه صبر وکړي نو دغه څيز د هغوی د خطاوؤ او خويدلو کفاره کيږي.

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَدْخُلُوْا بُيُوْتًا غَيْرَ بُيُوْتِكُمْ حَتّٰى تَسْتَاْنِسُوْا وَتُسَلِّمُوْا عَلٰٓى اَهْلِهَا ۭ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿٢٧﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو !) مه ننوځئ تاسې (هغو) كورونو ته چې غير وي له كورونو د تاسې، تر هغه پورې چې (اجازه وغواړئ او) سره وغږېږئ (له بهره او اذن واخلئ) او سلام واچوئ پر اهل د دوى، دغه (اخبار او استيذان) د تاسې خير بهتر ډېر غوره دى تاسې ته (له ننوتلو د بې اجازې څخه)، ښايي چې پند واخلئ تاسې (په دې سره).

تفسير: يعنې ماسوا د خپل خصوصي هستوګنې له كوره د بل چا د هستوګنې په كور كې همداسې په خپل سر بې خبره مه ننوځئ !، ولې تاسې نه يئ خبر چې هغه ستاسې د ننوتلو په وخت كې په څه حال كې دى؟ او څه احوال لري؟، آيا دى په دغه حال كې د بل چا په ورتګ خوښېږي كه خفه كيږي؟ لهذا پخوا د ننوتلو څخه ښايي ور نارې كړئ، او ځان ته اجازت حاصل كړئ، او له ګردو نارو څخه بهتر «سلام» اچول دي.

په حديث كې راغلي دي چې: درې ځلې دې سلام واچوي، او د ننوتلو اجازه دې وغواړي، كه له درې ځلې سلام اچولو سره هم اجازه ور نه كړه شي؛ نو بېرته دې وګرځي.

في الحقيقت دغه داسې ډك له حكمته تعليم دى، كه د هغه په تعميل كې مواظبت وكړ شي؛ نو دغه د مېلمه او كوربه دواړو په حق كې ښه او بهتر دى.

مګر افسوس ! نن مسلمانان په دغو مفيدو هداياتو پسې چندان نه ګرځي، ولې نور ملل او اقوام هم دغه اصول او آداب له مونږ څخه اخيستې، هغه ته يې ډېره ترقي او توسعه وركړې ده.

فَاِنْ لَّمْ تَجِدُوْا فِيْهَآ اَحَدًا فَلَا تَدْخُلُوْهَا حَتّٰى يُؤْذَنَ لَكُمْ ۚ وَاِنْ قِيْلَ لَكُمُ ارْجِعُوْا فَارْجِعُوْا هُوَ اَزْكٰى لَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿٢٨﴾

پس كه چېرې ونه مومئ تاسې په دې كورونو كې څوك (چې اذن دركړي)؛ پس مه ننه وځئ په دې كورونو كې تر هغه پورې چې اذن وكړى شي تاسې ته، او كه چېرې وويل شي تاسې ته د اجازت غوښتلو (په وخت كې) چې بېرته وګرځئ؛ پس بېرته وګرځئ تاسې ! (او د ننوتلو سعي مه كوئ)، چې دغه بېرته ګرځېدل ډېر غوره (او پاك) دي تاسې ته، او الله په هغو كارونو چې كوئ يې تاسې ښه عالم دى (او جزا يې دركوي).

تفسير: يعنې كله چې دغه درمعلوم شي، چې په هغه كور كې هيڅوك نشته، خو بيا هم د بل چا په كور كې بې د هغه د مالك او مختار له اجازې مه ننوځئ !، ځكه چې د بل په ملكيت كې بې له اجازې بل هيڅوك د تصرّف حق نه لري، تاسې ته نه دي معلوم چې د بې اجازې ننوتلو څخه به څومره جګړې پېښېږي؟ هو ! كه صراحتًا يا دلالتًا اجازت دركړ شي؛ نو بيا هيڅ مضايقه نشته، او كه چېرې وويل شي تاسې ته داجازت غوښتلو په وخت كې چې بېرته وګرځئ؛ پس بېرته وګرځئ تاسې، او د ننوتلو سعي مه كوئ !، يعنې د داسې ويلو څخه مه خفه كېږئ !، ځكه چې ډېر اوقات انساني طبيعت دې ته نه وي مائل چې له چا سره وګوري، يا به د بل چا له ملاقاته په دغه وخت كې حرج ورپېښېږي، په داسې يوه خبره او كار مشغول وي چې په دغه نه خوښېږي، چې بل څوك پرې مطّلع شي، نو تاسې ته څه ضرورت در پېښ دى، چې خامخا به پر هغه بار اچوئ؟ حال دا چې په دغه شان تكليف او زحمت اړولو سره عمومًا د دوستى او خپلوۍ تعلّقات ورانيږي.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ مَسْكُونَةٍ فِيهَا مَتَاعٌ لَّكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا تَكْتُمُونَ ﴿۲۹﴾

نشته پر تاسي باندې هيڅ ګناه په دې کې چې ننوځئ (بې له اجازت غوښتلو) هغو کورونو ته چې نه دي د چا د اوسېدنې، په هغه ځای کې متاع منفعت د تاسې وي، او الله ته ښه معلوم دي هغه چې ښکاره کوئ يې تاسې، او هغه چې پټوئ تاسې.

**تفسير:** يعنې په عمارتونو کې چې کوم خاص او معلوم داره سړی هستوګنه نه لري، او نه د هغه په ننوتلو او راوتلو کې څه ممانعت او قيود وي، مثلاً مسجد، سرای او مثل ذلک، که هلته مو کوم شی وي، يا په هغه ځای کې د څه موعد لپاره اوسېدل غواړئ؛ نو البته هلته پخپل سر تللی او ننوتلی شئ، او دلته هيڅ د استيذان ضرورت نشته.

قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَٰلِكَ أَزْكَىٰ لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ ﴿۳۰﴾

ووايه (ای محمده !) مؤمنانو ته چې پټې کړي دوی سترګې خپلې (له نامحْرَمو څخه) او ښه ټينګ دې وساتي دوی فرجونه سترونه خپل (د محرّماتو په مقابل کې)، دغه (اغماض او حفظ) ډېر پاکيزه (او ګټور) دی دوی ته، بېشکه چې الله ښه خبردار دی په هغو کارونو چې کوي يې (دوی، نو ښايي چې ترې په وېره اوسي، پر هر حرکت او په سکون خپل).

**تفسير:** بده کتنه د زنا اول قدم دی، له دې نه د لويو لويو فواحشو دروازې پرانستلې کېږي، قرآن عظيم عمومًا د بدکارۍ او بې حيايۍ د انسداد لپاره ړومبی د همدغه سورې د بندولو توصيه کوي، يعنې مسلمان نارينه او ښځې ته يې حکم ورکړی دی، چې د بدو کتلو څخه ځان ساتي !، او خپل شهوات پخپل واک (اختيار) او اداره کې ولري، که يو ځلې بې اراده او ناڅاپه د کوم نارينه نظر پر کومې ښځې ولوېد؛ نو بيا دې بالاراده او قصدًا د هغه پر لوري خپلې سترګې نه اړوي !، ځکه چې دغه دويم ځلي ليدل به د ده په واک (اختيار) کې وي، او په هغه کې به معذور نه ګڼل کيږي.

که انسان ځان په دې سره عادت کړي، چې خپلو پټو ته وګوري، او په خپل اختيار او اراده سره د ناجائزو امورو په طرف ونه ګوري؛ نو ډېر ژر د ده د نفس تزکيه کېدی شي، کله چې اول ځلې ناڅاپه کوم اتفاقي نظر لوېږي؛ د شهوت او نفساني غوښتنې له سببه نه وي، نو ځکه حديث هغه معاف کړی دی، ښايي چې دلته په ﴿مِنْ أَبْصَارِهِمْ﴾ کې هم «من» تبعيضيه اخيستی همدغه طرف ته يې اشاره فرمايلې وي.

﴿إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ﴾ الآية ـ يعنې د انسانانو د سترګو غلا، او د زړونو پټې خبرې، او مخفيه نيات، او احوال ټول الله تعالی ته معلوم دي، لهذا انسان ته ښايي چې تل دغه علاّم الغُيوب حاضر او ناظر وګڼي، او له بدو افعالو، بدو خيالاتو، بدو کتلو او له هر قسمه بدو چارو څخه ځان وساتي، که نه هغه به يې سم له خپله علمه سره په سزا ورسوي.

وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ
بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ أَوْ آبَائِهِنَّ أَوْ آبَاءِ بُعُولَتِهِنَّ أَوْ أَبْنَائِهِنَّ أَوْ أَبْنَاءِ
بُعُولَتِهِنَّ أَوْ إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي إِخْوَانِهِنَّ أَوْ بَنِي أَخَوَاتِهِنَّ أَوْ نِسَائِهِنَّ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ أَوِ التَّابِعِينَ
غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ أَوِ الطِّفْلِ الَّذِينَ لَمْ يَظْهَرُوا عَلَىٰ عَوْرَاتِ النِّسَاءِ وَلَا يَضْرِبْنَ بِأَرْجُلِهِنَّ
لِيُعْلَمَ مَا يُخْفِينَ مِن زِينَتِهِنَّ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۳۱﴾

او ووايه (ای محمده) ايماندارو ښځو ته چې پټې دې کړي له (نامحرمو څخه) سترګې خپلې، او ښه ټينګ دې وساتي فرجونه سترونه خپل (د محرّماتو په مقابل کې)، او نه دې ښکاره کوي

زينت ښايست (او ځاى د ښايست) خپل مګر هغه چې ښكاريږي له دغه (زينت څخه په وخت د كسب او كار كې)، او ښايي چې وا دڅوي ټكري پوړني خپل پر ګرېوانونو خپلو (چې ټټر يې ښكاره نشي)، او نه دې ښكاره كوي زينت ښايست (او ځاى د ښايست) خپل (هيڅا ته) مګر لپاره دمېړونو (خاوندانو) خپلو (چې دغه د هغو دي)، يا پلرونو (او نيكونو) خپلو، يا پلرونو د مېړونو خپلو ته، يا ځامنو (او لمسيو) خپلو ته، يا ځامنو د مېړونو خپلو ته، يا ورونږو خپلو ته، يا ځامنو د ورونږو خپلو ته، يا ځامنو د خويندو خپلو ته، يا ښځو خپلو ته، يا هغه چا ته چې مالك شوي دي (د هغه) ښي لاسونه د دوى، يا هغو تابعانو ته چې نه وي خاوندان د حاجت ښځو ته له سړيو نه، يا هلكانو هغو ته چې نه وي خبر (دوى) پر اسرارو د ښځو، او نه دې وهي (دا ښځې) پښې خپلې لپاره د دې چې معلوم كړ شي هغه څيز چې پټوي يې دوى له زينت ښايست (ګاڼې) خپلې، او راجع شئ توبه وباسئ تاسې الله ته ټول اى مؤمنانو !، لپاره د دې چې تاسې ښېګڼه او خلاصى ومومئ (په دارينو كې).

تفسير: ښايست او سينګار عُرفًا خارجي او كسبي آرايش ته وايي، چې هغه له لباس يا زېور او نورو شيانو څخه حاصليږي، د دې احقر په نزد دلته د زينت ترجمه د سينګار په ځاى كه په زېبائش سره وكړه شي؛ نو زيات جامع او مناسب واقع كيږي، ځكه چې د زېبائش (ښايست) لفظ هر قسم خَلقي او كسبي زينت ته شامل دى، اعمّ له دې نه چې هغه د جسم خلقي پيدايښت سره متعلق وي، يا له پوښاك او نورو خارجي ډول و ډيل څخه حاصل شوى وي، د مطلب خلاصه داسې وه: ښځو ته د خپل هيڅ قسم خلقي يا كسبي ښايست اظهار پرته له خپلو هغو محارمو څخه چې يې ذكر وروسته راځي؛ د بل هيچا په مخ كې جائز نه دي، هو ! د هومره اندازې ښايست ظهور چې ضروري وي، او د هغه ستر او اخفاء په سبب د عدم قدرت يا ضرورت نشي ممكن كېدى؛ نو مجبورًا يا ضرورتًا د هغه په اظهار كې دومره مضايقه نشته، (مشروط په دې چې د فتنې خوف نه وي).

ليكن واضح دې وي چې په ﴿إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ سره صرف ښځو ته د عند الضرورت د هغو اعضاوو په اظهار كې اجازه وركړى شوې ده، نامحرمو سړيو ته له سره اجازه نشته، چې دوى دې خامخا دغو ښځو ته وګوري، يا له هغوى سره سترګې په سترګو شي، يا د دوى د اعضاوو سيل وكړي، ښايي د دغه اجازې څخه پخوا د همدې لامله الله تعالى مؤمنانو ته د غض البصر او د سترګو د ټيټولو حكم اوروليى وي، معلوم شو چې د يوه خوا د كوم عضوې د اظهار اجازه دغه نه لازموي، چې بل طرف ته د هغه كتل هم جايز وي، نارينه چې په ستر له سره مأمور نه دي، مګر د پاس آيتونو په اساس د ښځو له نظره مستور دي، يعنې ښځې له دېنه ممنوع دي چې نارينه وو ته وګوري، ښايي چې په ياد يې ولري چې په دغه آيت كې محض د ستر د مسئلې بيان شوى دى، يعنې له دې نه قطع نظر چې ښځه په كور كې وي كه د باندې؟ د ښځې د بدن كومه برخه د چا په مخ كې او په كومو حالاتو كې ښكاره كول جائز دي؟، پاتې شوه د «حجاب» مسئله؛ د هغې څه تفصيل ان شاء الله د «أحزاب» په سورت كې راځي.

مونږ چې د فتنې د خوف د نفي كوم شرط لګولى دى؛ هغه د نورو دلائلو او شرعيه وو قواعدو څخه مأخوذ دى، چې په اول تأمل او مراجعت له نصوصو څخه موندلى كيږي، د بدن په خلقي ښايست كې له ګردو څخه ډېر ښكاره شى د تې اوچتوالى دى، د هغه د مزيد تستّر لپاره يې په خاص ډول سره تأكيد وفرمايه، او د جاهليت د رسم د امحاء طريقه يې هم راوښوده، په جاهليت كې به ښځو ټكري (ځادرونه) په خپل سر اچول، او د هغه دواړه څنډې (غاړې) به يې ښېرته پخپلې شا غورځولې، او په دې ډوله د تې هيئت به څرګند پاتې كېده، دغه ګواكې د ښايست يوه مظاهره وه، لوى قرآن ده راوښوده چې ښايي ټكرى په سر واچول شي، او د هغه څنډې دې تر زنې لاندې تېرې شي، څو د ښځو غاړه او تى او غوږونه پرې په ښه ډول پټ شي.

﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾ الآية ـ «اونه دې ښکاره کوي ښځې زينت خپل هيڅا ته مګر لپاره د مېړونو (خاوندانو) خپلو چې دغه د هغوی دي، يا پلرونو او نيکونو خپلو، يا پلرونو د مېړونو (خاوندانو) خپلو ته، يا ځامنو او لمسيو خپلو ته، د تره او ماما حکم هم داسې دی، په دغو محارمو کې هم د مراتبو فرق شته، مثلاً هغه زينت او ښايست چې دا يې د خپل مېړه په مخ کې ظاهرولی شي؛ هغه د نورو محرمو په مخ کې نشي ځرګندولی، د زينت ځرګندول څو درجې لري، هومره د تستّر اهتمام چې له پرديو څخه کاوه شي؛ له محارمو څخه نه کيږي، او داسې مطلب نه دی چې هر يو عضو دې د دوی په مخ کې بربنډ او ښکاره کولی شي.

﴿أَوْ نِسَآئِهِنَّ﴾ ـ « او نه دې ښکاره کوي ښځې زينت خپل هيڅا ته مګر ښځو خپلو ته»، يعنې هغې ښځې ته چې د دې سره ناسته ولاړه لري، په دې شرط سره چې ښه اخلاق ولري، او د بد اخلاقو ښځو په مخ کې نه، او د ډېرو اسلافو په نزد له دې نه مسلمانې اصيلي ښځې مرادې دي، ځکه چې کافره ښځه د اجنبي سړي حکم لري.

﴿أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ﴾ ـ يعنې ستاسې وينځې وي، او د ځينو اسلافو په نزد مملوک مريي هم په دې کې داخل دی، او د قرآن ظاهر هم د هغه تأييد کوي، ليکن د جمهورو ائمه وو او اسلافو مذهب داسې نه دی.

﴿أَوِ التَّابِعِينَ غَيْرِ أُولِي الْإِرْبَةِ مِنَ الرِّجَالِ﴾ ـ «اونه دې ښکاره کوي ښځې زينت خپل هيڅا ته مګر هغو تابعينو ته چې نه وي خاوندان د حاجت ښځو ته له سړيو»، يعنې نوکر او هغه خدمتګار چې له خپله کار سره کار لري، او له سره دی وزګار نه وي، چې دې خوا او هغې خوا ته وګوري، او پخپل جاړو جوړو او ډوډۍ پخولو او نورو کورنيو چارو کې بوخت او لګيا وي، شوخ، شغب، سپين سترګی او ارمونی نه وي، يا داسې فاتر العقل، بې سد، پاګل وي چې حواس يې په خپل ځای نه وي پاتې، او محض په خوړلو او څښلو کې له کورنۍ سره شريک او مل وي.

﴿وَلَا يَضْرِبْنَ﴾ ـ او نه دې وهي دا ښځې پښې خپلې لپاره د دې چې معلوم کړ شي هغه څيز چې پټوي يې دوی له زينت خپل، يعنې ښايي چې د دوی هيئت او وضعيت، ناسته ولاړه داسې نه وي چې د ګاڼو (کالو) او زېوراتو غږ د پرديو توجه او ميلان ځان ته ورکش کړي، او ډېر ځلې داسې غږ او حرکات او سکنات د مخ او نورو د ليدلو څخه زيات د نفساني جذباتو داعي او محرک واقع کېدی شي.

وَأَنكِحُوا الْأَيَامَىٰ مِنكُمْ

نکاح وتړئ د هغه بې مېړونو (خاوندانو) ښځې او بې ښځو سړي له تاسې.

**تفسير:** په دغه آيت کې دا حکم ورکوي چې د هغو کسانو نکاح چې تر اوسه نه ده تړلې شوې، يا وروسته د نکاح تړلو څخه بېرته کونډه شوی وي؛ نو په مناسبه موقع کې دې بيا د هغوی نکاح سره وتړله شي !، په حديث کې نبي عليه السلام فرمايلي دي: «ای علي ! په درې کارونو کې ځنډ (ايسارتيا) مه کوه !، د فرض لمانځه وخت چې راشي، جنازه چې حاضره شي، او کونډه ښځه چې کله يې سيال پيدا شي».

هغه اشخاص او اقوام چې عمدًا د خپلو کونډو او رنډو په نکاح کې تکاسل، تساهل او تعطيل کوي، يا د داسې خبرو د اورېدلو څخه بد وړي؛ ښه دې وپوهيږي چې هغوی پخپل دغه وضعيت کې ګناهګاران دي، او ښايي چې ژر تر ژره دې توبه وباسي، او د هغوی په نکاح کې دې تلوار او مسارعت وکړي.

وَالصَّالِحِينَ مِنْ عِبَادِكُمْ وَإِمَائِكُمْ

او صالحان نېکان له مريو خپلو او له وينځو خپلو.

تفسیر: یعني که مریي او وینځې د دغې خبرې ورو او لایق وګنئ، چې د زوجیت حقوق اداء کولی شي، او د نکاح کولو لامله نه مغروریږي، او ستاسې له کارا وخدمت څخه لاس نه وباسي؛ نو د دوی نکاح هم وتړئ !.

إِن يَكُونُوا فُقَرَاءَ يُغْنِهِمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٣٢﴾

که چېرې وي (دغه مذکورین) فقیران ناداران؛ نو غنیان به کړي دوی الله له فضله خپله، او الله کشائش والا ښه عالم دی.

تفسیر: ځینې خلق د دې لامله متردّد وي، او وراندې وروسته کوي؛ چې وروسته له نکاح به د ښځې او د وړو بار څوک په خپلو اوږو اخلي؟ دلته الله تعالی دوی پوهولي دي، چې د هسې موهومو خطراتو لامله تاسې د نکاح څخه مه په شنګ کېږئ !، ستاسې او ستاسې د ښځو د ووړکیو روزي د الله تعالی په قدرت کې ده، تاسو ته دغه خبره نه ده معلومه، چې د هغوی له قسمته الله تعالی ستاسې په رزق او روزي کې څه ارتوالی او کشائش پیدا کړي، نه مجرّد کونډه (لونډه) پاتې کېدل د غناء موجب دی، او نه له نکاح تړلو سره فقر او افلاس مستلزم دی، دغه ګرد خبرې د الله تعالی په اراده او مشیت پورې تړلي دي، لکه چې د «التوبه» په (۴) رکوع کې یې داسې فرمایلي دي: ﴿وَإِنْ خِفْتُمْ عَيْلَةً فَسَوْفَ يُغْنِيكُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ إِن شَاءَ﴾.

وَلْيَسْتَعْفِفِ الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ نِكَاحًا حَتَّىٰ يُغْنِيَهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۗ

او ښایي چې ځان دې وساتي هغه کسان چې نه مومي دوی (سامان اسباب د) نکاح تر هغه پورې چې غنیان کړي دوی الله له فضله خپله.

تفسیر: یعني هغه چې اوس دومره مقدور هم نه لري، چې له کومې ښځې سره خپله نکاح وتړلی شي؛ نو تر هغه پورې چې الله تعالی ده ته مقدور ورکړي، ښایي چې د خپل نفس اداره ښه وکړي، او تر انضباط لاندې یې راولي، او زیار (کوښښ) وکړي چې عفیف پاتې شي، دغه خبره هیڅ بعیده نه ده، چې د هم هغه عفّت او ضبط النّفس په برکت دی الله تعالی غني وګرځوي، او د نکاح ډېر ښه مواقع ورمهیّأ کړي.

وَالَّذِينَ يَبْتَغُونَ الْكِتَابَ مِمَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا ۖ وَآتُوهُم مِّن مَّالِ اللَّهِ الَّذِي آتَاكُمْ ۚ وَلَا تُكْرِهُوا فَتَيَاتِكُمْ عَلَى الْبِغَاءِ إِنْ أَرَدْنَ تَحَصُّنًا لِّتَبْتَغُوا عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا ۚ وَمَن يُكْرِههُّنَّ فَإِنَّ اللَّهَ مِن بَعْدِ إِكْرَاهِهِنَّ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٣٣﴾

او هغه کسان چې غواړي مکاتب والی له هغو (وینځو مریو) چې مالکان شوي دي د هغو ښي لاسونه ستاسې؛ نو مکاتبان کړئ دوی که چېرې پېژانده تاسې په دوی کې خیر، او ورکوئ دوی ته له ځینو مالونو د الله هغه چې درکړي یې دي تاسې ته، او مه مجبوروئ تاسې وینځې خپلې په زنا (او بدو کارونو) که چېرې اراده لري دوی د ځان پاک ساتلو، لپاره د دې چې طلب کوئ تاسې (په دغه اکراه سره) مال د ژوندون لږ خسیس (چې هغه باړه د زنا او وړوکی دی)، او هر هغه چې زور یې وکړ په دوی؛ پس بېشکه الله وروسته له زور د مالکانو پر دوی ډېر ښونکی ښه رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعني که د چا مریي او وینځې ووایي، یا د زیات توثیق لپاره خپله دغه وینا ولیکي، چې «زه به په دومره مدّت کې دومره مال درته وګټم، او در به یې کړم، څو ته مې آزاد او خپلواک کړې»؛ نو مالک ته لازم دي چې دغه ومني،

او داسې يو تعهّد ليک ورو ليکي، دغسې معاملې ته مكاتبه وايي، او دغه د مريو د آزادولو يو ځان ته صورت دی، ليکن مالکانو ته ښايي چې دغه خبره هلته قبوله کړي چې دی په واقعي ډول سره وپوهېږي چې آزادي د دغه مريي يا وينځې لپاره ښه ده، او وروسته د رقيت د قيد د وتلو څخه غلا، يا زنا يا د نورو بدو افعالو نه مرتکب کيږي، او خوشې چټي او چپوله (فضول) هر چېرې نه ګرځي، که دغسې ډاډينه او اطمينان ورته پيدا شي؛ نو بېشکه ښايي چې ده ته د آزادی موقع ورکړه شي !، څو دی آزاد شي، او د خپلې فلاح او بهبودی لپاره ښه ترقي او پرمختګ وکړی شي، که چېرې خپله نکاح تړي؛ نو پخپل واک (اختيار) دې وتړي، او د رِقّيت لامله دې ميدان پرې تنګ نه وي.

﴿وَّاٰتُوۡهُمۡ مِّنۡ مَّالِ اللّٰهِ الَّذِیۡۤ اٰتٰىكُمۡ﴾ - «او ورکوئ دوی ته له ځينو مالونو د الله هغه چې درکړي يې دي تاسې ته»، دغه يې دولتمنو اغنياوو مسلمانانو ته فرمايلي دي، چې د داسې مکاتبانو مريو يا وينځو سره مالي امداد وکړئ، چې د زکات له وجوهو څخه وي که د نورو عامو صدقاتو او خيراتونو او نورو څخه وي، څو دوی ژر تر ژره د خپلو آزاديو او خپلواکيو مالکان شي، او که مالک د کتاب د بدل کومه برخه ورمعافه کړي؛ نو دغه به ډېر لوی امداد وي.

تنبيه: د زکات په مصارفو کې يو مصرف چې د ﴿وَفِي الرِّقَابِ﴾ په نامه ابنبی شوی دی، هغه د همدغو مريانو او د وينځو د آزادولو پنګه ده، د راشدو خلفاوو په زمانه کې له داسې مريانو سره له بيت المال څخه امداد او مرستې کېدلې.

﴿وَلَا تُكۡرِهُوۡا فَتَيٰتِكُمۡ﴾ الآية - په جاهليت کې به ځينو خلقو پر خپلو وينځو د زنا او بدکاری کسب کاوه، له عبد الله بن أبيّ رئيس المنافقين سره څو داسې وينځې وې، چې پر هغو به يې د همدغې زنا او بدکاری کسب کاوه، او په دغه وسيله به يې روپۍ ګټلې، چې له دوی څخه ځينې ځينې وينځې مسلمانانې شولې، او د دغه شنيع فعل د کولو څخه يې انکار وکړ، نو ځکه هغه ملعون د دوی په وهلو او ټکولو لاس پورې کړ، دغه آيت په همدغه مورد کې نازل شو، او د دغه شان نزول د رعايت د مزيد تقبيح لپاره يې د ﴿اِنۡ اَرَدۡنَ تَحَصُّنًا﴾ او د ﴿لِّتَبۡتَغُوۡا عَرَضَ الۡحَيٰوةِ الدُّنۡيَا﴾ قيود زيات کړل، که نه پر وينځو باندې د بدکاری اجراء په هر حال حرامه ده، او دغسې ګټه (فائده) چې په دغه وسيله په لاس راځي، په هر اسم او رسم چې وي؛ بيخي حرامه او ناپاکه ده، اعمّ له دې چې دغه بدکاري دوی پخپله رضا او رغبت سره وکړي، يا محض د دغې دنيوي حقيرې فائدې لپاره په جبر او اکراه سره پر دوی اجراء کيږي، نو په دغه وروستني صورت کې د هغه ګناه او وبال شديد او انتهايي وقاحت لري، او د لويې بې شرمی دليل دی.

يعنې زنا داسې بد عمل دی، چې د جبر او اکراه څخه وروسته هم بد او خراب وي، ليکن الله تعالی محض پخپل فضل او رحمت سره د مکرهه بېچارګی او ناتوانی ته کتلي، عفوي کوي يې، او په هر صورت پر مکرِه (په زور کوونکي) باندې به سخت عذا ب وي، او پر مکرهه (چې پرې زور شوی وي)؛ رحم به وکړ شي.

وَلَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَيۡكُمۡ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ وَّمَثَلًا مِّنَ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَمَوۡعِظَةً لِّلۡمُتَّقِيۡنَ ﴿٣٤﴾

او خامخا په تحقيق نازل کړی دي مونږ تاسو ته آيتونه ښکاره کوونکي (د حلالو او د حرامو د حدودو او د احکامو)، او مثل عجيب د هغو کسانو چې تېر شوي دي پخوا له تاسې، او نازل کړی دي مونږ موعظه پند لپاره د متّقيانو پرهېزګارانو.

تفسير: يعنې په قرآن کې ګرد نصائح، احکام او د تېرو اقوامو عبرتناکه واقعات بيان شوي دي، څو د پاک الله څخه ويريدونکي انسانان هغه واوري، او ترې پند، نصيحت او عبرت واخلي، او خپل انجام او عاقبت ته فکر وکړي، يا مثلا له ﴿مِّنَ الَّذِيۡنَ خَلَوۡا﴾ څخه دغه مراد دی، چې پر پخوانيو امّتونو هم داسې حدود او احکام جاري کړی شوي وو، چې په دغه سورت کې مذکور دي، او ځينې پېښې هم د همدغه (افک) د پېښې په شان وروړاندې شوې دي، چې په دغه سورت کې بيان کړی شوي دي، پس هم هغه شان چې الله تعالی د مريمې صديقې رضي الله تعالی عنها او يوسف

صدیق علیه السلام د دښمنانو بهتان باطل او د دوی برائت یې ظاهر کړې؛ د بي بي عائشې صدّیقې بنت الصدیق رضي الله تعالی عنهما برائت او لویي یې هم ښکاره کړه، چې تر قیام د قیامت پورې د صادقینو او صالحینو په زړونو کې یې نقش في الحجر کړې، او د دروغجنانو دښمنانو مخونه یې تور کړل.

اَللّٰهُ نُوْرُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ ؕ اَلْمِصْبَاحُ فِيْ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوْكَبٌ دُرِّيٌّ يُّوْقَدُ مِنْ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيْتُوْنَةٍ لَّا شَرْقِيَّةٍ وَّلَا غَرْبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ زَيْتُهَا يُضِيْٓءُ وَلَوْ لَمْ تَمْسَسْهُ نَارٌ ؕ نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ ؕ يَهْدِى اللّٰهُ لِنُوْرِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَيَضْرِبُ اللّٰهُ الْاَمْثَالَ لِلنَّاسِ ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۙ﴿۳۵﴾

الله (په حسي او معنوي لحاظ) رڼا کوونکی د اسمانونو او ځمکې دی، مثل صفت د نور د ده (داسې دی) لکه (روڼه) طاقچه چې په هغې کې یوه بله ډیوه وي، دغه بله ډیوه په قندیل د (شیشه) کې وي، دغه قندیل (ښیښه په سبب د هغې رڼا چې په کې ده) ګواکې یو ستوری دی روڼ ځلېدونکی، چې بلوه شي (دا یوه چراغ په اول کې) له تېلو د ونې برکتناکې د زیتون، چې نه مشرق طرفته وي او نه مغرب طرف ته، نژدې دي تېل د دې چې رڼا وکړي (له خپله ځانه له ډېرې صفایۍ) او اګر که نه وي رسېدلې دې ته اور، (دغه) رڼا (د ډیوې) پر رڼا (د صافو تېلو ده)، لاره ښیي الله نور خپل ته هغه چا ته چې اراده وفرمایي، او بیانوي الله مثالونه خلقو ته (او په معقولاتو یې پوهوي د محسوساتو په وسیله)، او الله په هر څیز ښه عالم دی.

**تفسیر:** یعنې د ځمکې او د اسمان رونق او وداني د الله تعالی له جانبه ده، که الله تعالی مدد ونه کړي؛ نو ګرد به سره ورانېږي، (موضح القرآن). ګردو مخلوقاتو ته د وجود نور او رڼا د الله له طرفه ورکړی شوې ده، په لمر، سپوږمۍ، ستوري، پرښتو، انبیاوو او په اولیاوو د هدایت هغه انوار او پلوشې چې هر چاته رسېږي، د هم هغه رفیع دربار څخه رسیږي، تمام علويّات او سفليّات د الله تعالی له تکوینیه وو او تنزیلیه وو آیتونو څخه منور دي، د حسن او جمال یا د خوبۍ او کمال کومه وړانګه (پلوشه) چې هر چېرې برېښي؛ هغه د همده له برکته منوّره ده، او د هغه د مبارک ذات د جمال او کمال یوه پلوشه ده.

په حدیث کې راغلي دي: «إن الله خلق خلقه في ظلمة ثم ألقى عليهم من نوره، فمن أصابه من نوره يومئذ اهتدى، ومن أخطأه ضلّ» (فتح الباری د ۶ ج ۴۳۰ مخ) «یعنې هر هغه چاته چې په هغه وخت کې د الله تعالی له نوره برخه وروړسېده؛ هغه هدایت وموند، او هر هغه چې له هغه څخه بې برخې شو؛ ګمراه پاتې شو».

واضح دې وي هم هغسې چې د الله تعالی نور صفات مثلاً سمع، بصر، او د نورو کوم کیفیت نشي بیاموندی؛ هم داسې د نور او رڼا صفت هم د ممکناتو په نور نشي قیاس کېدی، هسې خو د الله تعالی په نور سره ګردو موجوداتو ښایست موندلی دی، مهتدینو مؤمنینو ته د الله تعالی له نور څخه د هدایت او عرفان هم هغه خصوصي برخه وررسیږي.

د هغه مثال خلاصه داسې شوه، چې د مؤمن د زړه ښیښه نهایته صافه او پاکه وي، او د الله تعالی په توفیق په هغې کې د حق د قبول داسې یو زبردست استعداد موندل کیږي، چې بې له اوره په خپل سر روڼه ښکاري، او د لګېدلو او رڼا خورولو لپاره مستعد او تیار دی، اوس که لږ څه اور او حرارت ورنژدې شي، یعنې د وحي او قرآن تېزه رڼا هغه مَس کړي؛ علی الفور د هغه فطري نور مشتعل شي، همدغه یې ﴿نُوْرٌ عَلٰى نُوْرٍ﴾ وفرمایل، باقي دغه ګرد (ټول) د الله تعالی په قبضه کې دي، د هر چا په نسبت چې اراده وفرمایي؛ دغه رڼا یې ور په برخه کوي، او همده ته ښه معلوم دي چې دغه رڼا چا ته عنایت وفرمایي؟ او کوم یو ترې محروم کړي؟، د دغو عجیبو او غریبو مثالونو د بیان کولو هم دغه غرض

دی، چې د استعداد خاوندانو ته د بصيرت يوه رڼا حاصله شي، يوائې په خپله الله تعالى ته د تمثيل مناسب موقع او محل په پوره ډول سره معلوم دی، بل چاته له سره دغسې قوّت او قدرت نشته، چې دغسې موزون او جامع مثال وړاندې کړی شي، وړاندې يې فرمايلي دي چې: هغه رڼا له دې نه پيدا کيږي، چې په هغو مساجدو کې چې کامل خلق سبا او بېگا عبادت کوي، هلته دې په ښه شان سره خپل فکر او دقت صرف کړي.

فِي بُيُوتٍ أَذِنَ اللَّهُ أَنْ تُرْفَعَ

په هغو کورونو (مسجدونو) کې چې حکم کړی دی الله چې پورته دې کړل شي (په بناء سره دغه مساجد يا په تعظيم سره).

تفسير: الله تعالى د هغو کورونو د تعظيم او تطهير حکم ورکړی دی، يعنې د هغوی دې خبر واخيست شي !، او له هر قسمه گندگۍ او لغو افعالو او اقوالو څخه دې پاك وساتلی شي، د مساجدو په تعظيم کې دغه هم داخل دي، کله چې هلته داخل شي، د «تحية المسجد» دوه رکعت نافله دې ولوست شي !.

وَيُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ

او يادوه شي په هغه کې نوم د دغه (الله).

تفسير: تسبيح، تهليل، او د قرآن تلاوت او نور گرد اذکار په دې کې شامل دي.

يُسَبِّحُ لَهُ فِيهَا بِالْغُدُوِّ وَالْآصَالِ ﴿٣٦﴾

تسبيح وايي دغه (لمونځ کوي الله) ته په دغو کورونو کې په سبا او په بېگا.

تفسير: يعنې په گردو مناسبو اوقاتو کې الله تعالى يادوي، ځينې مفسّرين وايي چې: له «غدوّ» څخه د سبا لمونځ مراد دی، او پـه «آصال» باقي څلوره واړه لمونځونه داخل دي، ځکه چې «أصيل» د لمر له زواله څخه نيولې تر گهيځ (سحر) پورې مودې ته ويل کيږي.

رِجَالٌ لَا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَنْ ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ

(داسې) سړي چې نه غافلوي دوی سوداگري او نه بيع پېرودل له ذکره يادء د الله، او له سم قـائمولو اداء کولو د لمانځه، او له ورکولو د زکات.

تفسير: يعنې کاروبار او معاش او دنيوي ژوندون دوی د الله تعالى له ياده او د الله تعالى د احکامو په ځای راوړلو څخه نه غافلوي، مثلاً که ډېر لوی سوداگر او بيـپار وي که معمولي دکاندار وي؛ دغه دواړه د الله په ياد کې تل لگيا وي، او هيڅ يو شی دوی د الله تعالى له ذکره نه غافلوي، د أصحابو کرامو رضوان الله تعالى عليهم أجمعين هم دغه شان وو.

يَخَافُونَ يَوْمًا تَتَقَلَّبُ فِيهِ الْقُلُوبُ وَالْأَبْصَارُ ﴿٣٧﴾

ويريږي (دوی سره له ذکره او طاعته له عذابه) د هغې ورځې چې اوړي رااوړي، مضطرب به وي په هغې ورځې کې زړونه او سترگې (له ډېرې وېرې).

تفسير: يعنې په هغه ورځ کې به زړه په هغې خبرې باندې وپوهيږي، چې تر اوسه پورې نه پوهېده، او سترگې به داسې ويرووونکي واقعات ويني، چې له سره يې پخوا له دې نه نه وي ليدلي، په زړونو کې به کله د نجات توقع پيدا کيږي،

او كله به د هلاك خوف، او ستر ګي به كله ښى خوا ته ګوري او كله كيڼې خوا ته، او د دې خبرې په انتظار كې به وي، چې له كوم لوري به نيول كيږو؟ يا د كوم لوري أعمالنامې څمونږ په لاس كې راكولى كيږي.

لِيَجْزِيَهُمُ اللَّهُ أَحْسَنَ مَا عَمِلُوا وَيَزِيدَهُم مِّن فَضْلِهِ ۗ وَاللَّهُ يَرْزُقُ مَن يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿٣٨﴾

لپاره د دې چې جزا وركړي دوى ته الله ډېره غوره جزا د هغو عملونو چې كړي دي دوى، او زيات به كړي (الله) دوى ته له فضله احسانه رحمته خپل، او الله رزق روزي وركوي هر چاته چې اراده وفرمايي (د رزق وركولو د هغو) بې له حسابه (وافره پريمانه).

تفسير: يعني د هغو ښو كارونو لپاره كوم اجر او صله چې مقرره ده؛ هغه به وررسيږي، د الله تعالى له فضله لا څه زياته هم وركوله كيږي، چې دهغه تفصيل او تعيين اوس نشي كېدى.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا أَعْمَالُهُمْ كَسَرَابٍ بِقِيعَةٍ يَحْسَبُهُ الظَّمْآنُ مَاءً حَتَّىٰ إِذَا جَاءَهُ لَمْ يَجِدْهُ شَيْئًا وَوَجَدَ
اللَّهَ عِندَهُ فَوَفَّاهُ حِسَابَهُ ۗ وَاللَّهُ سَرِيعُ الْحِسَابِ ﴿٣٩﴾

او هغه كسان چې كافران شوي دي؛ عملونه د دوى په شان د سراب (شګو ګل) دى په هوار ډاګ كې چې ګمان كوي پر هغه باندې تږى د اوبو، تر هغه پورې چې راشي (او ورسيږي هغه شي ته چې د اوبو ګمان يې پرې كړى وو)؛ نو ونه مومي دغه سړى هغه چې ګمان د اوبو پرې كړى شوى وو هيڅ شى، او بيا به مومي الله په نزد (د عمل) خپل، پس پوره به وركړي (الله) ده ته پوره حساب (جزا د عمل د ده)، او الله ډېر ژر (اخيستونكى) د حساب دى.

تفسير: روايت دى چې عُتبه بن ربيعه په جاهليت كې ډېر عبادت او طلب د دين كاوه، بيا چې د اسلام لمر راوخوت دى كافر شو، نو په دغه مناسبت دغه پاس آيت نازل شو، چې مطلب يې دغه دى: او هغه كسان چې كافران دي؛ هغه عملونه د دوى چې په ظاهر كې نېك ښكاري، لكه صله رحمي پالل، يا د مريي آزادول، يا د وږي مړول، يا دغسې نور خير خيرات كول، نو دغه ګرد عملونه په شان د هغې شورى دي، چې په هوار ميدان كې ښكاريږي، په سخته ګرمى په وخت د نيمې ورځې كې، او داسې بريښي چې تږى سړى پرې د اوبو ګمان كوي، او په بيړه (تلوار) مخامخ وردرومي، تر هغه چې ورسيږي هغه ځاى ته چې د اوبو ګمان پرې شوى وو؛ نو بيا نه مومي دى هغه ګمان كړى شوى خپل هيڅ شى .. الخ، بلكه د هلاكت كنده لا ورته مخامخ پرته ده او د حساب او كتاب وخت په سر ورته ولاړ او پاك الله دده ګرد عمر حساب او كتاب اخلي، او ددغه اضطراب او حسرت په وخت كې دده ټول حساب يو ځلى الله تعالى تصفيه او خلاصوي.

أَوْ كَظُلُمَاتٍ فِي بَحْرٍ لُّجِّيٍّ يَغْشَاهُ مَوْجٌ مِّن فَوْقِهِ مَوْجٌ مِّن فَوْقِهِ سَحَابٌ ۚ ظُلُمَاتٌ بَعْضُهَا فَوْقَ بَعْضٍ
إِذَا أَخْرَجَ يَدَهُ لَمْ يَكَدْ يَرَاهَا ۗ وَمَن لَّمْ يَجْعَلِ اللَّهُ لَهُ نُورًا فَمَا لَهُ مِن نُّورٍ ﴿٤٠﴾

يا (عملونه د دوى) پشان د هغو تاريكيو دي په بحر ژور كې، چې پټ كړى وي (دغه بحر) لره يو موج، د پاسه يې بل موج وي، او د پاسه د دغه (موج) وريځ وي (دغه څلور قسمه) تياري دي، چې ځينې د دوى د پاسه د ځينو نورو دي، كله چې راوباسي (دغه پربوتى په دغو تيارو كې) لاس خپل؛ نه وي نژدې (دى) چې ووينې دغه (لاس خپل)، او هر هغه چې نه وي وركړى الله ده ته نور رڼا؛ پس نشته ده ته هيڅ نور رڼا.

تفسير: يعنې د سمندر په ژورو کې (۱): يخپله د لوی سيند تياره، (۲): د هغه د پاسه د طوفاني هوا او امواجو تپه توره تياره، (۳): بيا د هغه څخه برسېره د سختې ويروونکې تکې تورې وريځې تياره، (۴): ورسره د ترږمو توره تياره شپه هم فرض کړه شي؛ نو پر دغو تيارو باندې لا پسې تزيید کيږي، په دغو تورو تيارو کې که په درياب کې غورځيدونکی چې أقرب الأعضاء دی پورته کړي، او خپلو سترګو ته يې نژدې راولي؛ نو بيا هم د ډېرو تيارو له سببه به يې هيڅ شی په نظر نه ورځي، چې هغه ته ځمونږ په محاورو کې داسې وايي: «سترګو ته سترګې په کار دي»، پاس د مؤمنانو په ذکر کې يې چې: ﴿يَهۡدِى ٱللَّهُ لِنُورِهِۦ مَن يَشَآءُ﴾ فرمايلي وو، دغه جمله د هغې په مقابل کې ده، يعنې هر هغه چا ته چې الله تعالی نور او توفيق نه وي ورکړی؛ نو هغه ته بل څوک څه رڼا رسولی شي؟ د هغه استعداد خراب وو، توفيق ور ونه رسېد، او د سيند په ژوره کې ولوېد، او د رڼا ورتلو دروازې يې پر خپل ځان پسې بندې کړې، نو بيا نور او رڼا له کومې لارې ورننوځي.

تنبيه: ربّ العزّت د کفّارو په اعمالو پورې دوه مثالونه وتړل، په درې اعتبارونو سره: (۱): په اعتبار د تخيير، چې ای مخاطبه ! که دغو اعمالو ته ګورې چې هيڅ فائده او نفع نه لري؛ نو لکه سراب دي.

(۲): که دې ته ګورې چې نور او رڼا د حق او ايمان ورسره مل نه وي؛ نو لکه ظلمات دي.

(۳): که په اعتبار د تقسيم د مکانينو ورته ګورې؛ نو نظر عقبی ته دا لکه سراب داسې دي، او د نظر دنيا ته لکه ظلمات داسې دي.

أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يُسَبِّحُ لَهُۥ مَن فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَٱلطَّيۡرُ صَٰٓفَّٰتٖۖ

آيا نه وينې ته ای مخاطبه ! بېشکه الله چې دی؛ تسبيح وايي ده ته هر هغه چې په اسمانونو کې دي، (او هر هغه) چې په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې) اومرغان هم (تسبيح وايي) په دغه حال کې چې خواره کوونکي وي د وزرو خپلو (په هوا کې).

كُلّٞ قَدۡ عَلِمَ صَلَاتَهُۥ وَتَسۡبِيحَهُۥۗ

هر يو (له دغو مذکورينو چې دی)؛ په تحقيق معلوم دی (الله) ته لمونځ د هغه، او تسبيح د هغه.

تفسير: يعنې الله تعالی هر شي ته د هغه د حال سره مناسب د انابت ـ عبوديت ـ اطاعت ـ تسبيح او تهليل الهام فرمايلی دی؛ چې هغه پر دغه پوهېدلی دی، او تل همغه خپله وظيفه بلا ناغه ادا کوي، ليکن د افسوس او تعجّب مقام دی، چې ډېر تش په نامه سره انسانان د غرور او غفلت او د ظلمت او جهالت په دلدل کې داسې خښ شوي دي، چې د حقيقي مالك له يادولو، او د عبوديت د وظيفې په ځای راوړلو څخه بيخي بې برخې پاتې دی.

تنبيه: د مخلوقاتو د تسبيح په نسبت د سورت بني اسرائيل په (۵) رکوع کې څه مضمون پخوا له دې نه ليکلی شوی دی، ښايي چې هغه هلته ولوست شي.

وَٱللَّهُ عَلِيمُۢ بِمَا يَفۡعَلُونَ ۝٤١

او الله ته ښه معلوم دي هغه (اعمال هم) چې کوي يې دوی.

تفسير: يعنې اګر که د دوی په عبادت او بندګی باندې تاسې ونه پوهېږئ، ليکن پاك الله ته دغه ګرد شيان معلوم دي، او الله تعالی ته دغه ښه معلوم دي؛ چې هر څوك څه کوي؟.

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿۴۲﴾

او خاص الله ته دی ملک سلطنت د اسمانونو او د ځمکې، او (هم خاص) الله ته دي بېرته ورتله د ټولو.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُزْجِيْ سَحَابًا ثُمَّ يُؤَلِّفُ بَيْنَهٗ ثُمَّ يَجْعَلُهٗ رُكَامًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ

آيا نه وينې ته (ای مخاطبه) چې بېشکه الله روانوي شړې ورېځې (ټوټې ټوټې هر طرف ته چې اراده وفرمايي)، بيا يو ځای والي فرمايي په منځ د دغو (ټوټو د ورېځو) کې، بيا يې وګرځوي لاندې باندې قت په قت، پس وينې به ته ای (انسانه) باران چې وځي له منځه د دې ورېځې.

**تفسير:** يعني ړومبی د ورېځو وړوکې وړوکې ټوټې پورته کيږي، دغه ګردې سره يو ځای کيږي، او يوه لويه د ورېځې ټوټه ترې جوړيږي، بيا دغه ورېځې داسې ترتيب او ترکيب مومي، چې د يوې د پاسه به بله ځای نيسي، او يوه پرېړه (غټه) طبقه ترې متشکله کيږي.

وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ جِبَالٍ فِيْهَا مِنْۢ بَرَدٍ فَيُصِيْبُ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ وَيَصْرِفُهٗ عَنْ مَّنْ يَّشَآءُ ۗ يَكَادُ سَنَا بَرْقِهٖ يَذْهَبُ بِالْاَبْصَارِ ﴿۴۳﴾

او نازلوي (الله) له (طرفه د) اسمانه له (ورېځو يا دږليو په شان د) غرونو، چې وي په هغو (غرونو) کې ځينې له ږلی، پس رسوي (الله) دا ږلی هغه چاته چې اراده وفرمايي (د رسونې يې)، او ګرځوي يې هر هغه چا نه چې اراده يې وفرمايي (د ګرځولو يې)، نژدې وي رڼا بربښنا د هغو (ږلی) چې بيول وکړي په ابصارو (د ناظرينو او ورک کړي بصارت يې).

**تفسير:** يعني لکه چې په ځمکه کې د تيږو (ګټو) غرونه دي، ځينو اسلافو ويلي دي چې هم داسې په اسمان کې هم د ږلی غرونه دي، شيخ الهند محمود الحسن (رحمة الله عليه) د دې سره موافقه ترجمه کړې ده، ليکن زياته او راجح او قوي دا ده، چې له سماء څخه ورېځې مراد شي، مطلب يې داسې شو چې له ورېځو څخه چې په کثافت او غلظت کې د غرونو په شان دي؛ ږلی اوروي، چې له هغو څخه ډېرو خلقو ته جاني او مالي نقصانات رسيږي، او زيات کسان ترې محفوظ پاتې کيږي.

يُقَلِّبُ اللّٰهُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ ۗ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّاُولِى الْاَبْصَارِ ﴿۴۴﴾

ګرځوي الله شپه او ورځ (په تبديل، تزييد، تنقيص، حرارت، برودت، ضياء، ظلمت او نورو)، بېشکه په دغو (ياد شويو شيانو) کې خامخا عبرت دی خاوندانو د سترګو او بصيرت ته.

**تفسير:** يعني د ورځې څخه وروسته شپه او د شپې څخه وروسته ورځ د همدغه پاک الله په قدرت ځي راځي، همدغه الله تعالی کله ورځې او کله شپې اوږدوي او لنډوي، او د هغوی تودوالی په يخوالي او يخوالی په تودوالي سره تبديلوي، نو لازم دی چې د قدرت د داسې عظيم الشأن دلائلو او شواهدو د ليدلو څخه انسان بصيرت او عبرت حاصل کړي، او د هغه حقيقي مالک الملکوت په طرف د زړه په صدق سره رجوع وکړي، چې د ده په قدرت کې د دغو ګردو تقلّباتو او تصرّفاتو زمام او واګې دي.

وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَآبَّةٍ مِّنْ مَّآءٍ ۚ فَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ ۚ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّمْشِيْ عَلٰى اَرْبَعٍ ؕ يَخْلُقُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۵﴾

او الله پيدا کړی دی هر حيوان چې ګرځي (په ځمکه کې) له اوبو، پس ځيني له هغوی هغه دي چې تګ کوي (خوځيږي) پر نس ګېډه پر تېر خپل (لکه مهي، مار)، او ځيني له دوی هغه دي چې تګ کوي پر دوو پښو (خپلو لکه انسان مرغان)، او ځيني د دوی هغه دي چې تګ کوي په څلورو (پښو لکه اس، اوښ)، پيدا کوي الله (ما سوا له دغو مذکورو) هر هغه څه چې اراده يې وفرمايي (د خلقت د هغو)، بېشکه الله پر هر څيز باندې ښه قادر دی (چې ځينې يې خلقت د هر راز مخلوقاتو دی).

تفسير: يعني که کوم حيوان ته له څلورو پښو څخه زياتې پښې هم ورکړې دي؛ نو بعيد نه دی، او د ده لا محدوده قدرت او مشيت هيڅوک نشي محصورولی، او که الله تعالی خپل ځينو مخلوقاتو ته دغسې قدرت ورعطاء کړې، چې هغوی له جماداتو او عناصرو او نورو څخه نور شيان ايجاد او اختراع کړي؛ نو هغه هم د همدغه الله لطف او احسان دی، چې هغوی ته يې دغسې پوهه او ادراک ور په برخه کړی دی.

لَقَدْ اَنْزَلْنَآ اٰيٰتٍ مُّبَيِّنٰتٍ ؕ وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۴۶﴾

خامخا په تحقيق نازل کړي دي مونږ آيتونه بيانوونکي واضح، او الله سمه صافه لاره ښيي هر هغه ته چې اراده وفرمايي (د لار ښوونې د هغې) لارې سمې صافې (د اسلام او جنّت ته).

تفسير: يعني تکوينيه او تنزيليه آيات يې دومره ښکاره او واضح دي، چې د هغو په ليدلو او اورېدلو هم هيڅ يو عقلمن انسان ښايي ګمراه او بې لارې نشي، ليکن پر سمه صافه لاره همغه تلی شي چې الله تعالی ورته د هدايت توفيق ور په برخه کړی وي، سره له دې چې په مليونو انسانانو دغه د قدرت ظاهر او باهر دلائل او شواهد ګوري، کله چې دوی د هغو په وسيله خالق تعالی نه پېژني، او نه موحدان او مسلمانان کيږي؛ ګواکې د نتيجې په اعتبار د دوی دغه ليدل د نه ليدلو په شان دي.

وَيَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلّٰى فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۷﴾

او وايي (دا منافقان) چې ايمان راوړی دی مونږ پر الله او پر رسول (د الله) او حکم منلی دی مونږ (د الله او د رسول الله)، بيا مخ ګرځوي (له اسلامه) يوه ډله له دوی وروسته له هغه (ايمان او اطاعت)، او نه دي دغه (ګرځېدونکي) مؤمنان (صدقاً).

تفسير: دغه د منافقينو ذکر دی، دوی به په ژبه سره د ايمان او اطاعت دعوی کوله، کله چې د عمل وخت راته، نو سم له خپلې دعوی سره به يې عمل نه کاوه، او له اسلامي احکامو به يې مخ ګرځاوه، حقيقت دا دی چې د دوی په زړونو کې له ابتداء څخه د ايمان او انقياد آثار نه وو موجود، هغه چې د ژبې جمع او خرڅ وو؛ د امتحان او ابتلاء په وخت کې به دغه کلائين هم ويلې کېده، او دروغ به يې له رښتيا څرګند او جلا ښکاربده.

وَإِذَا دُعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٤٨﴾ وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلْحَقُّ يَأْتُوٓا۟ إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ﴿٤٩﴾

او هر كله چې وبللى شي دوى الله او رسول د دغه (الله) ته لپارهددې چې حكم وكړي دغه (رسول) په منځ د دوى كې؛ ناڅاپه يو فريق ډله د دوى اعراض ډېره كوونكي دي (له حكم د رسوله). او كه چېرې وي دوى ته حق (په زعم د دوى پر بل)؛ نو راځي دوى دغه (رسول الله) ته ګړندي فرمان منونكي.

تفسير: يعنې كه له دوى جګړه له چا سره واقع كېده، او په دې پوهېدل چې مونږ په ناحقه يو، په دغه وخت كې كه مقابل فريق هغوى ته ويل چې: راځه چې د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم حضور ته لاړ شو، او د دغې جګړې فيصله له هغوى څخه وغواړو !؛ نو دغه منافقان به په دغه ورتګ نه راضي كېدل، ځكه چې دوى پوهېدل چې محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم بې له لحاظ او خاطر د حق او حقّانيت رعايت كوي، او سم له عدله او انصافه خپله فيصله صادروي، چې په هغه تقدير به د دوى له مفاد څخه مخالف واقع كېده، حال دا چې پخوا له دې نه به دوى داسې دعوى كوله؛ چې مونږ پر الله تعالى او رسول الله ايمان راوړى دى، او د دوى ګرد احكام منو؛ نو اوس د دوى هغه دعوى چېرې لاړه؟ هو ! كه په كومه معامله كې حق د دوى په طرف وي؛ نو په دغه وخت كې په ډېر سرعت او چالاكۍ او په ماته غاړه د محمد صلى الله عليه وسلم دربار ته حاضرېږي، او د خپلې فيصلې انحصار د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په مبارك ذات څرګندوي، ځكه چې په دغه تقدير دوى داسې ګڼي چې هلته سم له عدالته او انصافه څمونږ په جانب فيصله صادرېږي، نو دغه څنګه ايمان او اسلام دى؟ دا خو تش شخصي اغراض او هواپرستي ده.

أَفِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ أَمِ ٱرْتَابُوٓا۟ أَمْ يَخَافُونَ أَن يَحِيفَ ٱللَّهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُۥ ۚ بَلْ أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ﴿٥٠﴾

آيا په زړونو د دوى كې مرض رنځوري (د كفر او نفاق) ده؟، آيا شكمن دي دوى (په نبوّت د محمد)؟، آيا ويرېږي دوى له دې نه چې ظلم به وكړي الله پر دوى (يا ظلم به وكړي) رسول د دغه (الله پر دوى؟، داسې نه دى چې الله او رسول الله پر چا ظلم وكړي)، بلكه دوى چې دي همدوى ظالمان دي (په اعراض سره).

تفسير: يعنې د الله تعالى جلّ جلاله او محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په نسبت تاسې ته څه تردّد او اندېښنه پيدا شوې ده، يا د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په صداقت يا د الله تعالى جل جلاله په وعد او وعيد كې څه شك او شبهه لرئ؟ يا داسې ګمان كوئ چې الله تعالى جل جلاله يا د هغه رسول محمد صلى الله عليه وسلم به د دوى معاملات په خلاف د انصاف فيصله كوي؟ نو ځكه د دوى په حضور كې د خپلې دعوى له وړلو څخه څه اندېښنه او تردّد كوي؟ نو په ياد يې ولرئ چې هلته له سره د ظلم او بې انصافۍ احتمال نشته، هو ! پخپله همدغو خلقو ظلم ته خپلې ملاوې تړلې دي، او غواړي چې خپل حق پوره حاصل كړي، او د نورو يوه پيسه هم ببرته ور نه كړي، نو ځكه له دې نه ويرېږي چې خپل معاملات محمدي شريعت او الهي عدالت ته وړاندې كړي، ځكه چې پوهيږي چې د محمد رسول الله منصفانه فيصله به څمونږ له مطلب څخه خلاف وي.

إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ ٱلْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوٓا۟ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَن يَقُولُوا۟ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۚ وَأُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٥١﴾

ببشكه همدا خبره ده چې ده وينا د مؤمنانو كله چې وبللى شي دوى الله ته او رسول د دغه (الله) ته لپاره د دې چې حكم وكړي په منځ د دوى كې (په وخت د جګړې كې)؛ دا چې ووايي:

واوربده مونږ (خبره د تا)، او ومانه مونږ (حکم د تا) او دغه ویونکي همدوی دي بریالیان (کامیاب) خلاصی موندونکي (له عذابه په مراد رسیدلي).

تفسیر: یعني د صادقو مسلمانانو کار داسې وي او ښايي چې همداسې وي، کله چې په کومه معامله کې دوی ته د الله تعالی د احکامو بلنه او دعوت وشي، اګر که ظاهراً په هغه کي د دوی ګټه (فائده) یا تاوان وي؛ په منده ورځغلي، او د یوې شېبې لپاره څه ځنډ (تأخیر) او توقّف په کي نه کوي، او في الفور «سمعًا وطاعة» وايي، او د هغه د حکم منلو لپاره تیـار او آماده شي، چې په دغه کې د دوی اصلي نیکي او حقیقي فلاح راز مضمر دی.

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَخْشَ اللّٰهَ وَيَتَّقْهِ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ ﴿۵۲﴾

او هر څوک چې اطاعت وکړي حکم ومني د الله، او د رسول د دغه (الله) او وویریږي له الله، او ځان وساتي (له غضبه د ده)؛ پس دغه (فرمان منونکي ویریدونکي) همدوی دي بري موندونکي د (جنّت).

تفسیر: یعني هغه چې في الحال مطیع وي، او پر خپلو تېرو تقصیراتو نادم وي، او له الله تعالی څخه وویریږي، او توبه وکړي او په مستقبل کې له بدو چارو او لارو څخه خپل ځان وساتي؛ نو د دوی لپاره په دنیا او آخرت کې برې او کامیابي ده.

وَاَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ لَئِنْ اَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ ؕ قُلْ لَّا تُقْسِمُوْا ۚ طَاعَةٌ مَّعْرُوْفَةٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۵۳﴾

او قسمونه خوري (منافقان) په الله سخت سخت قسمونه د دوی، قسم دی خامخا چې که (حکم) امر وکړې دوی ته (په وتلو سره جهاد ته)؛ نو خامخا به وځي (دغه جهاد ته) دوی هرومرو، ووایه (ای محمده ! منافقانو ته) قسم مه خورئ تاسې د دروغو، طاعت نېک (څمونږ مطلب دی)، بېشکه الله ښه خبردار دی په هغو کارونو چې کوئ یې تاسې.

تفسیر: یعني منافقان ډېر سخت تأکیدي قسمونه خوري، او غواړي چې تاسې بیخي ډاډه او متیقن کړي چې: «که تاسې مونږ ته حکم راکړئ؛ نو مونږ ګرد کور کهول پرېږدو، او دې ته تیار ولاړ یو چې د الله تعالی لارې ته ووځو، او د هغه د ګردو احکامو تعمیل وکړو، که محمد رسول الله مبارك لږ څه اشاره وفرمايي؛ نو مونږ خپل ګرد مال دولت د الله تعالی په لاره کې لګوو، او مونږ ترې بیخي جدا کیږو»، نو د دې په نسبت داسې فرمايي چې: دومره غټو خبرو ویلو او داسې قسمونو یادولو ته حاجت نشته، ستاسې د اطاعت حقیقت ګردو ته معلوم شوی دی.

قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ ۚ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ مَّا حُمِّلْتُمْ ؕ وَاِنْ تُطِيْعُوْهُ تَهْتَدُوْا ؕ وَمَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ الْمُبِيْنُ ﴿۵۴﴾

ووایه (ای محمده دوی ته) اطاعت وکړئ (حکم ومنئ) تاسې د الله او د رسول (د الله په خلوص سره په هر څه کې)، پس که مخ وګرځوئ تاسې (ای خلقو له اطاعته د رسول الله)؛ نو بېشکه همدا خبره ده چې دی پر دغه رسول ځما هغه بار (د تبلیغ) چې پرې ایښی شوی دی، او دی پر تاسې هغه (بار) چې پر تاسې ایښی شوی دی (او پرې مکلّف یئ، چې اطاعت د رسول الله دی)، او که اطاعت وکړئ، حکم ومنئ تاسې د دغه (رسول الله)؛ نو سمه صافه لاره به ومومئ،

او حق ته به پرې ورسېږئ، او نه دی پر (ذمه د) رسول مګر رسونه ښکاره (د شرائعو چې هغه يې ادا کړې ده).

تفسير: يعني پر رسول د الله تعالى له طرفه د تبليغ بار ايښى شوى دى، چې ده هغه په ښه شان سره اداء کړى دى، او کوم بار چې پر تاسې ايښى شوى دى؛ هغه تصديق او د حق قبول دى، او دغه ده چې د ده د ارشاده سره موافق تګك وکړئ !، که تاسې دغه خپله ذمه واري محسوسه کړئ، او د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم د احکامو تعميل په ښه شان سره وکړئ؛ نو د دواړو دارينو برى او د کاميابى لاره به ومومئ، او په دنيا او عُقبى کې به خوشال اوسېږئ، که نه د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم هيڅ نقصان نشته، او تاسې به د خپلو شرارتونو او سرکښيو سزا او بده نتيجه پخپله وګورئ، محمد رسول الله خو خپله فريضه اداء کړې ده، او عند الله له خپلې ذمه وارۍ څخه مسئول نه دى.

وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْاَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۠ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِيْنَهُمُ الَّذِي ارْتَضٰى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ خَوْفِهِمْ اَمْنًا ۭ يَعْبُدُوْنَنِيْ لَا يُشْرِكُوْنَ بِيْ شَيْـــًٔا ۭ

وعده کړې ده الله له هغو کسانو سره چې ايمان يې راوړى دى له تاسې، او کړي يې دي ښه (عملونه)، چې قسم دى خامخا به خليفګان کړي (الله) دوى په ځمکه کې لکه چې خليفګان کړي يې وو هغه کسان چې پخوا وو له دوى نه، او خامخا ثابت قوي به وګرځوي هرومرو دوى ته دين د دوى هغه (دين د اسلام) چې غوره کړى دى (الله) دوى ته، او هرومرو بدل به ورکړي هرومرو دوى ته وروسته له وېرې د دوى له دښمنانو امن (او اطمينان)، عبادت به کوي دوى ځما، شريک به نه پيدا کوي له ما سره هيڅ څيز.

تفسير: يعني هغه ذوات چې د دوى په منځ کې په اعلى درجه نېکان او د سيد الانس والجان کامل پيروان او تابعان دي، وروسته له رسول الله به دوى ته د ځمکې حکومت ورکاوه کيږي، او د اسلام دغه دين به چې د الله تعالى خوښ او پسند دى، د دوى په لاسونو خوروي او قائموي، لکه چې د استخلاف په لفظ کې دې طرف ته اشاره ده، چې دغه کسان به تش د دنيوي باچاهانو په شان نه وي، بلکه د رسول الله خليفه ګان به وي، د سماوي حکومت اعلان به کوي، او د حق دين اساسونه به قائموي، او په بر او بحر او هر چېرې به د دوى احکام او تصرّفات جاري کيږي، په دغه وخت کې به مسلمانان د کافرانو څخه نه ويريږي، او په پوره امن او سکون سره به د الله تعالى په عبادت کې مشغول او لګيا اوسيږي، او په دنيا کې به د امن او امان زمانه او دوره وي، د دغو مقبولو او معززو بندګانو ممتاز شان به دغه وي، چې دوى به د خالص واحد الله تعالى عبادت او بندګي داسې کوي چې په هغې کې به د يوې ذرې په اندازه هم د شرک او اختلاط اثر نه وي، د جلي شرک ذکر او نسبت خو له دغو سره امکان نه لري، د خفي شرک لږ آثار او علائم به هم په دوى کې نه ليدل کيږي، دوى ګرد به د يوه «قدّوس جل وعلا شأنه و عظم برهانه» خالص بندګان وي، او يواځې به له الله تعالى څخه ويريږي، او يواځې هغه ته به هيله (آرزو) او اسره کوي، او پرې متوکلان معتمدان به وي، د الله د رضاء په لاره کې به ژوندون کوي، او په همدغه لاره کې به خپل ځانونه جاروي (قربانوي)، پرته له الله تعالى د بل کوم موجود خوف او وېره به له سره د دوى په زړونو کې لارې نه مومي، او نه د بل چا د خوښې او خفګان څه پروا کوي.

الحمد لله چې د الله تعالى دغه وعده د څلورو تنو راشدو خلفاوو رضي الله تعالى عنهم په لاسونو پوره شوه، او ګردې دنيا د دغه عظيم الشأنو وړاندوينو (پېشګويي) د يوې يوې وينا، د يوه يوه حرف مصداق پخپلو سترګو سره

وليدل، د څلورو واړو راشدو خلفاوو رضي الله تعالى عنهم څخه وروسته هم اسلامي باچاهان وقتًا فوقتًا په همدغو اوصافو سره متصف راغلي دي، هر كله چې الله تعالى بيا اراده وفرمايي؛ وروسته له دې نه هم راځي.

په احاديثو كې راغلي دي، چې وروستنى خليفه به امام مهدي رضي الله تعالى عنه وي، چې د هغه په نسبت عجيب او غريب بشارات اورول شوي دي، د الله تعالى ځمكه له عدله او انصافه ډكوي، او في سبيل الله جهاد كوي، او د هغه په قوّت به «كلمة الله» ته اعلاء او اسلام ته ښه ترقي او اعتلاء وركوي، «اللهم احشُرنا في زُمرته، وارزُقنا شهادة في سبيلك، إنك واسع المغفرة وذو الفضل العظيم».

وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٥٥﴾

او هر څوك چې كافر شو پس له دغو لويو انعاماتو؛ پس دغه كسان هم دوى (غټ) فاسقان دي.

تفسير: يعنې د داسې عظيمو انعاماتو څخه وروسته ناشكري د ډېرو لويو مجرمانو او د زوررورو عاصيانو كار دى، شاه صاحب فرمايي: «هر هغه څوك چې د څلورو خلفاوو د خلافت او د دوى د فضل او شرف څخه منكر شو؛ د دغو الفاظو څخه د ده حال څرګنداوه شي»، ﴿وَالَّذِيْنَ جَآءُوْ مِنْۢ بَعْدِهِمْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِيْنَ سَبَقُوْنَا بِالْإِيْمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِيْ قُلُوْبِنَا غِلًّا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا رَبَّنَآ إِنَّكَ رَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ﴾.

وَأَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَأَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿٥٦﴾

او قائموئ تاسې (سم اداء كوئ سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او وركوئ زكات، او اطاعت وكړئ حكم ومنئ تاسې د رسول (د الله)؛ ښايي تاسې ته چې رحم وكړي شي پر تاسې.

تفسير: يعنې كه د الله تعالى له رحمته برخه اخيستل غواړئ؛ نو تاسې هم د هم هغو مقبولو بندګانو په شان حسنه اعمال ځان اختيار كړئ !، چې د لمونځونو په ښه شان سره قائمول، د زكات وركول دي، او د حيات په ټولو شعبو كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر احكامو تلل دي.

لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مُعْجِزِيْنَ فِي الْأَرْضِ ۚ وَمَأْوٰىهُمُ النَّارُ ۖ وَلَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿٥٧﴾

مه كوه ګمان خامخا پر هغو كسانو چې كافران شوى دي عاجز كوونكي (د الله) په ځمكه كې، او ځاى د هستوګنې د وى اور (د دوزخ) دى، او خامخا بد ځاى د ورتلو دى (دا دوزخ).

تفسير: دغه د نېكو بندګانو په مقابل كې يې د مردود او مغضوبو خلقو انجام او خاتمه ښوولې ده، يعنې كله چې نېكانو ته د ملك حكومت او د ځمكې خلافت عطاء كيږي؛ نو د كافرانو او بدكارانو ګردې مكارى او تدابير ماتيږي، او ماته يې ور په برخه كيږي، د الله تعالى د ارادې مخه هيڅ نشي نيولى، كه دوى په ګرده دنيا كې دې خوا او هغې خوا ته منډې ووهي، او هر چيرې لاړ شي او وځغلي؛ نو بيا هم د الله تعالى له سزا او پوښتنې څخه ځان نشي پټولى او خلاصولى، او يقينًا دوى د جهنّم په بنديخانه كې غورځول كيږي.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِيَسْتَأْذِنْكُمُ الَّذِيْنَ مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ وَالَّذِيْنَ لَمْ يَبْلُغُوا الْحُلُمَ مِنْكُمْ ثَلٰثَ مَرّٰتٍ ۚ مِنْ قَبْلِ صَلٰوةِ الْفَجْرِ وَحِيْنَ تَضَعُوْنَ ثِيَابَكُمْ مِّنَ الظَّهِيْرَةِ وَمِنْۢ بَعْدِ صَلٰوةِ الْعِشَآءِ ۚ ثَلٰثُ عَوْرٰتٍ لَّكُمْ ۚ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو !) ښايي چې اذن دې وغواړي له تاسې (په وخت د ننوتلو کې پر تاسې باندې) هغه (وينځې او مريان) چې مالکان شوي وي د هغو ښې لاسونه د تاسې، او هغه کسان چې نه دي رسيدلي حد (احتلام بلوغ) عقل ته له تاسې (احرارو) درې کرته: پخوا له لمانځه د سهار، او په هغه وخت کې چې بږدئ تاسې کالي (جامې) خپل د غرمې په وخت کې، او پس له لمانځه د ماسوختن، (دغه اوقات) درې وقتونه د خلل (پېښېدو د ستر) دي تاسې ته.

تفسير: په همدغو دريو اوقاتو کې عمومًا زائد کالي (جامې) له ځانه لرې کيږي، يا د خوب او د ويښې لباس سره تبديليږي، او مروښې زياتره په هم دغو اوقاتو کې کاوه شي، کله پخوا له سهاره، کله د غرمې د لمبلو شوق يا ضرورت چې هم انسان ته پېښيږي، او دا غواړي چې بل څوك پرې مطلع او خبر نشي، نو ځکه يې حکم ورکړ چې په دغو دريو اوقاتو کې نابالغو هلکانو، وينځو، او مريانو ته هم ښايي چې د ننوتلو اجازه واخلي، په نورو اوقاتو کې دوى ته نه ښايي چې د نورو پرديو په شان اجازه وغواړي، مگر که کوم شخص د خپلو مصالحو لامله په نورو اوقاتو کې هم د استيذان قيد زيات کړي؛ نو دلته استجازه ضروري ده.

لَيْسَ عَلَيْكُمْ وَلَا عَلَيْهِمْ جُنَاحٌ بَعْدَهُنَّ ۚ طَوَّافُونَ عَلَيْكُم بَعْضُكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٨﴾

نشته پر تاسې او نه پر دوى باندې هيڅ گناه (وبال) تېر له دغو دريو وقتونو (په بې اذن ننوتلو د دوى کې پر تاسې)، دوى گرځېدونکي دي پر تاسې (په تللو او ننوتلو لپاره د خدمت)، ځينې ستاسې پر ځينو نورو (گرځېدونکي يئ يو په بل)، همداسې (لکه چې دغه بيان يې درته وکړ)؛ ښکاره بيانوي الله تاسې ته آيتونه (د احکامو)، او الله ښه عالم (په ټولو احوالو) ښه حکمت والا دى.

تفسير: يعنې د پورته ذکر شويو اوقاتو څخه ما سوا په نورو اوقاتو کې عادتًا بې له مزاحمته او ممانعته يو له بل سره کتلى شئ، او په دغو تللو راتللو کې نابالغو هلکانو، وينځو او مريانو ته لازم نه دي، چې د هر وارې ننوتلو لپاره اذن او اجازه وغواړي، ځکه چې د دې شيانو له رعايته ډېر تکليف او حرج پېښيږي، او په کارونو کې او معاملاتو کې ډېر بندوالى او حرج واقع کيږي، چې هغه د الله تعالى له حکمته خلاف دى.

وَإِذَا بَلَغَ الْأَطْفَالُ مِنكُمُ الْحُلُمَ فَلْيَسْتَأْذِنُوا كَمَا اسْتَأْذَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٥٩﴾ وَالْقَوَاعِدُ مِنَ النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا يَرْجُونَ نِكَاحًا فَلَيْسَ عَلَيْهِنَّ جُنَاحٌ أَن يَضَعْنَ ثِيَابَهُنَّ غَيْرَ مُتَبَرِّجَاتٍ بِزِينَةٍ ۖ وَأَن يَسْتَعْفِفْنَ خَيْرٌ لَّهُنَّ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٦٠﴾

او کله چې ورسېدل واړه هلکان (اصيلان) ستاسې حد د (بلوغ) عقل ته؛ پس اذن دې وغواړي (په ننوتلو کې) پر تاسې باندې، لکه چې اذن غوښت هغو کسانو (چې بالغان شوي وو) پخوا له دغو (اطفالو)، همداسې (لکه چې بيان يې وفرمايه) ښکاره بيانوي الله تاسې ته آيتونه (د احکامو خپلو، او الله ښه عالم (په ټولو احوالو) ډېر حکمت والا دى (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي). او زړې ناستې له ښځو هغو څخه چې اميد نه لري دوى د نکاح (په سبب د ډېر زړوالي)؛

پس نشته پر دوی هیڅ ګناه (وبال) چې کیږدي (وباسي) دوی ظاهري جامې خپلې (لکه چادرې او برقې) په دې حال کې چې ښکاره کوونکې نه وي د ښایست خپل، او دا چې دوی ځان وساتي (له ایستلو د ظاهري جامې څخه هم) خیر دی دوی ته، او الله ښه اوریدونکی (د ټولو اقوالو)، ښه عالم دی (په ټولو احوالو).

تفسیر: یعنې هلکان تر هغه پورې چې نابالغه وي؛ د دغو دریو اوقاتو څخه ما سوا په نورو اوقاتو کې بلا اجازت ننوتلی شي، کله چې د بلوغ حد ته ورسیږي؛ بیا د هغه حکم د همغو نارینه وو په شان دی چې د هغو احکام په دغه آیت کې تېر شول: ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَدْخُلُوا بُيُوتًا غَيْرَ بُيُوتِكُمْ حَتَّىٰ تَسْتَأْنِسُوا وَتُسَلِّمُوا عَلَىٰ أَهْلِهَا﴾.

شاه صاحب لیکي: «که سپین سرې بوډۍ ښځې پخپلو کورونو کې په لړو ضروریو کالیو (جامو) کې لکه کمیس پرتو ګ ټکرۍ اوسیږي؛ نو درست دی، او که په پوره پرده کې واوسي؛ نو لا بهتر دی»، او کله چې له کوره د باندې وځي؛ که زائد کالي مثلاً برقع او نور له خپله ځانه لرې کړي؛ نو هیڅ مضایقه نه لري، په دې شرط سره چې په هغو کالیو د زینت اظهار نه وي، چې د هغې د پټ ساتلو حکم د ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ﴾ الآیة - په آیت کې ورکړی شوی دی، له دې نه د دې خبرې اندازه په ښه شان سره کېدی شي، چې قرآنکریم د ځوانو ښځو د پردې او ستر په متعلق څه منشأ لري؟ یعنې دغه خو د فتنې مخې نیولو او انسداد ظاهري انتظامات دي، پاتې شوې هغه خبرې چې د پردې په منځ کې کیږي، او د فتنې اسباب او عوامل څېرېږي (پیدا کیږي)؛ نو ښه وپوهېږئ چې الله تعالی د ګردو خبر اوري، او پر هر شي ښه خبردار دی، او سم له هغو به د هر چا سره معامله کوي.

لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَىٰ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَلَا عَلَى الْمَرِيضِ حَرَجٌ وَلَا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ أَن تَأْكُلُوا مِن بُيُوتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ آبَائِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أُمَّهَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ إِخْوَانِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخَوَاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَعْمَامِكُمْ أَوْ بُيُوتِ عَمَّاتِكُمْ أَوْ بُيُوتِ أَخْوَالِكُمْ أَوْ بُيُوتِ خَالَاتِكُمْ أَوْ مَا مَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُ أَوْ صَدِيقِكُمْ ۚ لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَأْكُلُوا جَمِيعًا أَوْ أَشْتَاتًا ۚ فَإِذَا دَخَلْتُم بُيُوتًا فَسَلِّمُوا عَلَىٰ أَنفُسِكُمْ تَحِيَّةً مِّنْ عِندِ اللَّهِ مُبَارَكَةً طَيِّبَةً ۚ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٦١﴾

نشته پر ړانده هیڅ حرج (مشقّت)، او نه پر ګوډ هیڅ حرج (محنت او وبال)، او نه په رنځور هیڅ حرج (سختي او ملامتي)، او نشته پر نفسونو ځانونو ستاسې هیڅ حرج (کلفت)؛ چې وخورئ تاسې له کورونو خپلو (یا له کورونو د اولادو او عیالو خپلو)، یا له کورونو د پلرونو خپلو، یا له کورونو د میندو خپلو، یا له کورونو د ورونو خپلو، یا له کورونو د خویندو خپلو، یا له کورونو د ترونو خپلو، یا له کورونو د عمو (تروریانو) خپلو، یا له کورونو د ماماګانو خپلو، یا له کورونو د خالو (توریانو) خپلو، یا (له کورونو د هغه چا) چې مالکان شوي یئ تاسې د کلیګانو (کنجیانو) د هغه (او د هغو متصرّفان یئ)، (یا له کورونو) د دوستانو خپلو، نشته پر تاسې هیڅ ګناه (وبال) په دې چې وخورئ (طعام ټول) سره یو ځای یا بېل بېل، نو کله چې ننوځئ تاسې (دغو مذکورو) کورونو ته؛ پس سلام اچوئ تاسې پر ځانونو خپلو، پېشکشي ده ثابته له (جانبه د) الله مبارکه طیبه (برکتناکه پاکیزه)، همداسې (لکه چې دغه تېر بیان یې وفرمایه)؛ ښکاره بیانوي الله تاسې ته آیتونه (د حکمت او احکام خپل) ښایي چې تاسې عقل وچلوئ (په خیر او شر).

تفسير: يعني د هغو كارونو له كولو څخه دغه أهل الابتلاء معاف دي چې په كې تكليف وي، مثلاً جهاد، حج، جمعه او جماعت او نور داسې شيان، (كذا في الموضح).

يا يې دا مطلب دى، چې د دغو معذروانو محتاجانو په خوراك كې له روغو خلقو سره هيڅ تكليف او حرج نشته، ځكه چې د جاهليت په زمانه كې به يې داسې محتاجان او معذوران نه پرېښوول، چې له اغنياوو او روغو خلقو سره ډوډۍ وخوري، د دوى په زړه كې به داسې خبرې ګرځېدې چې البته دغه خلق له دې نه كركه او نفرت كوي، چې له مونږ سره ډوډۍ وخوري، يا ځمونږ له ځينو اوضاعو او حركاتو څخه لكه چې دوى ته ايذاء او ضرر وررسيږي، او په واقع سره چې ځينو ته له دې نه نفرت او وحشت هم پيدا كېده، ځينو مسلمانانو ته له ډېرې اتقاء داسې خيال پيدا كېده، چې د داسې معذورانو او مريضانو سره په يو ځاى خوراك كولو كې شايد د مساوات او عدل اصول قائم پاتې نشي، ړوند د خوراك ګرد شيان نشي موندلى، ګوډ امكان لري چې په ځنډ (تأخير) سره راشي، او په مناسب ځاى كې نشي كېناستى، د رنځورانو خبره خو د خوځولو نه ده، نو بناء عليه له هغوى سره يې په يو ځاى كېناستلو كې احتياط كاوه، څو د دوى حق تلف نشي.

﴿أَوْمَامَلَكْتُم مَّفَاتِحَهُۥٓ﴾ يعني ستاسې تر تصرّف لاندې اېښې شوي دي، مثلاً يو سړى بل سړى د خپل شي وكيل يا محافظ ګرځوي، او دى كه له هغه څخه څه شى د معروف په كومه اندازه خوري او ښني؛ نو مجاز دى.

د سلام اچولو تقييد يې وفرمايه د ملاقات په وخت كې؛ ځكه چې له دې نه بله كومه ښه دعاء نشته، هغه خلق چې سلام نه اچوي، او د هغه په ځاى نور الفاظ له خپله ځانه جوړوي، يا د نورو پرديو اقوامو او مللو تقليدونه كوي؛ نو د دوى دغه تجاويز او تقاليد له سره د الله تعالى له دغه حكمه او تجويزه نشي بهتر كېدى.

إِنَّمَا ٱلْمُؤْمِنُونَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَإِذَا كَانُوا۟ مَعَهُۥ عَلَىٰٓ أَمْرٍ جَامِعٍ لَّمْ يَذْهَبُوا۟ حَتَّىٰ يَسْتَـْٔذِنُوهُ ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَسْتَـْٔذِنُونَكَ أُو۟لَـٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۚ فَإِذَا ٱسْتَـْٔذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَن لِّمَن شِئْتَ مِنْهُمْ وَٱسْتَغْفِرْ لَهُمُ ٱللَّهَ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٦٢﴾

بېشكه همدا خبره ده چې مؤمنان هغه كسان دي، چې ايمان يې راوړى دى پر الله او (په) رسول (د الله)، او كله چې وي دوى له دغه (رسُول) سره پر كوم كار جمع كوونكې (د خلقو لكه جمعه ـ جهاد يا جرګه)؛ نو نه ځي (پخپل سر) تر هغه پورې چې اذن وغواړي له دغه (رسول الله) نه، بېشكه هغه كسان چې اذن غواړي له تانه (اى ځما رسوله)؛ دوى هغه كسان دي چې كامل ايمان يقين لري پر الله او رسول د الله (او مني يې)، پس كله چې اذن وغواړي دوى له تانه (اى رسوله ځما تللو ته) لپاره د ځينو كارونو خپلو؛ پس اذن وركړه هغه چاته چې خوښه وشي ستا له دوى نه (د اذن وركولو)، او مغفرت وغواړه د دوى لپاره له الله تعالى، بېشكه الله ښه بخښونكى (د خطيّاتو) ډېر رحم كوونكى دى.

تفسير: يعني پوره ايمان لرونكي هغه دي چې د محمد رسو ل الله په غوښتلو سره ژر حاضريږي، او كله چې په كوم اجتماعي كار كې شريك او ملګري شي، لكه جمعه، عيدين، جهاد، د مشورې مجالس او نور؛ نو بې له اجازې ترې نه ځي، او په خپل سر ترې نه پاځيږي، همدغه كسان هغه ذوات دي، چې په كاملې او صحيحې معنى سره د الله تعالى او د رسول الله أحكام مني، او د دوى پوره مطيعان دي.

لَا تَجْعَلُوا دُعَآءَ الرَّسُولِ بَيْنَكُمْ كَدُعَآءِ بَعْضِكُمْ بَعْضًا ۚ قَدْ يَعْلَمُ اللَّهُ الَّذِينَ يَتَسَلَّلُونَ مِنكُمْ لِوَاذًا ۚ فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ عَنْ أَمْرِهِ أَن تُصِيبَهُمْ فِتْنَةٌ أَوْ يُصِيبَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٦٣﴾

مه ګرځوئ (مه ګڼئ اى مؤمنانو ! بلنه) دعاء د رسول پخپلو منځونو کې پشان د دعاء (بلنې) د ځينو د تاسې ځينو نورو ته (بلکه د رسول د بلنې اجابت ضرور وکړئ)، په تحقيق معلوم دي الله ته هغه کسان (هم) چې کښيږي يو يو دوه دوه پټ د باندې وځي له تاسې، په دې حال چې يو له بله ځان سره پنا کوي او وځي، پس ودې ويريږي هغه کسان چې مخالفت کوي له امره (حکمه) د دغه (رسول ځما) له دې نه چې ورسيږي دوى ته څه فتنه (آفت په دنيا کې)، يا ورسيږي دوى ته عذاب دردناک (په آخرت کې).

تفسير: يعنې د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر غوښتلو حاضر کېدل فرضيږي، ځکه چې د رسول الله غوښتل د نورو د غوښتلو په شان نه دي، او ښايي چې تل د رسول الله صلى الله عليه وسلم د دعوت ځواب په «لبّيک» سره ووايي، که د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دعوت نه حاضريږي؛ نو ښايي چې د دوى له ښېرا څخه وويريږي، ځکه چې د دوى ښېرا د نورو انسانانو په شان نه ده، او په مخاطباتو کې دې هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ادب او د عظمت او عزّت پوره لحاظ او رعايت وکړ شي، او د نورو عوامّو خلقو په شان «يا محمد» يا نورو عادي الفاظو سره دې خطاب ورنه کړى شي، بلکه د «يا نبي الله !»، «يا رسول الله !» په شان تعظيمي القابو سره دې مخاطب وګرځولى شي.

دغه کسان چې د نبوي مجلسه د باندې وتل؛ هغه منافقان وو چې پر دوى پند اونصيحت اوربدل ډېر سخت او شاقّ وو، هر کله چې دوى موقع موندله؛ سترګې به يې غولولې، او ښوى به يې له اجازې له مجلس څخه د باندې تښتېدل، مثلاً هر کله چې به کوم مسلمان د خپل ضرورت له کبله له پيغمبر صلى الله عليه وسلم په اجازه له مجلس څخه تللو نو دوى به هم خپل ځان له هغه سره نښلاوه، يا د ده په سيوري کې به يې خپل ځان ښوى تېراوه، نو د دې په نسبت داسې فرمايي چې: تاسې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه څه خپل ځان پټوئ، پاک الله ته خو ستاسې ګرد حال احوال معلوم دي.

﴿فَلْيَحْذَرِ الَّذِينَ يُخَالِفُونَ﴾ يعنې د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له احکامو څخه مخالفت کوونکي ته خوف او وېره پکار ده، چې د دوى په زړونو کې د کفر او نفاق او د نورو فتنو نيالګي (جرړې) د تل لپاره ببخ او بنسټ (بنياد) ونه نيسي، او د هغه لامله د دنيا په کوم دردناک عذاب کې اخته او مبتلا شي.

أَلَآ إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۖ قَدْ يَعْلَمُ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ وَيَوْمَ يُرْجَعُونَ إِلَيْهِ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٦٤﴾

واورئ خبردار او پوه شئ چې بېشکه خاص الله لره دي هر هغه څه چې په اسمانونو او ځمکو کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې ملکا خلقًا وعبيدًا)، په تحقيق معلوم دي (الله ته) هر هغه څه چې تاسې پرې يئ (له اخلاصه او نفاقه) او (معلومه ده الله ته) هغه ورځ چې وروستلى شي (دغه خلق) الله، پس خبردار به کړي (الله) دوى پر هغو عملونو چې دوى کړي دي (له خير او له شره) او الله پر هر څيز باندې، ښه عالم دى.

تفسير: يعنې ممکن دي چې د مخلوق له سترګو څخه په پټه کوم کار وکړئ، ليکن د الله تعالى څخه ستاسې هيڅ حال او احوال نشي پټ پاتې کېدى، او نه د الله تعالى له اسمانونو او له ځمکو څخه چېرې وتلى او تښتېدلى او پټېدلى شئ،

الله تعالی همغسې چې ستاسې له دغه موجوده حالت څخه عالم او با خبر دی؛ همداسې د هغې ورځې له مجازاتو څخه هم پوره عالم او خبردار دی، کله چې ټول مخلوقات به د حساب او کتاب لپاره د ده په لوري بیول کیږي، او د دوی د هر یوه په مخ کې به د ده د یوې یوې ذرې عمل حساب او کتاب په واضح او ښکاره ډول ایښود کیږي، نو د داسې علیم الکلّ او مالك الکلّ له سزا څخه به مجرم چېرې نجات وموندلی شي؟.

تمّت سورة النور بفضل الله و توفیقه.



# سُورَةُ الفُرقَان

«د (الفرقان) سورت مکّي دی، پرته له (۶۸، ۶۹، ۷۰) آیتونو چې مدني دي، (۷۷) آیتونه، (۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۵)، په نزول کې (۴۲) سورت دی، وروسته د «یس» له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

تَبٰرَكَ الَّذِيْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا ﴿۱﴾

ډېر برکتناک څښتن (خاوند) د ډېر خیر او پورته دی هغه (ذات) چې نازل کړی یې دی قرآن په بنده خپل (محمد) لپاره د دې چې شي دی خلقو ته ویروونکی (له جحیمه).

تفسیر: «فرقان» (د فیصلې کتاب) یې وفرمایل، دغه قرآن ته چې د حق او باطل آخري فیصله او د حلالو او حرامو سره بېلتون په ښکاره ډول سره کوي، یعنې قرآن عظیم الشأن ګرد جهان ته د کفر او عصیان له بدې خاتمې خبر ورکونکی دی، لکه چې په دغه سورت کې «د مکذبینو» او معاندینو ذکر ډېر شوی دی، ښایي د هغه له خاطره دلته د «نذیر» صفت یې بیان فرمایلی وي، او «بشیر» یې نه دی یاد کړی، او د «للعالمین» په لفظ سره یې دا راښکاره کړي دي چې دغه قرآن یواځې د عربو امیونو ته لکه چې ځینې خلق وایي؛ نه دی نازل شوی، بلکه د ګردو پېریانو او انسانانو د هدایت او اصلاح لپاره نازل شوی دی.

الَّذِيْ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَلَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّلَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِي الْمُلْكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهٗ تَقْدِيْرًا ﴿۲﴾

هغه (الله) چې خاص همده ته دی ملک سلطنت د آسمانونو او د ځمکې، او نه یې دی نیولی هیڅ ولد، او نشته ده ته شریک په ملک سلطنت کې، او پیدا کړی دی الله هر شی، پس په اندازه کړی یې دی هغه (شی) په اندازه کولو سره.

تفسیر: یعنې جنس، نوع، قد، رنګ، خوی، عمر، اجل، عمل، رزق، حیات، ممات، مکان، زمان، او نور دا ټول یې په یوه مقدار په لوح محفوظ کې لیکلي دي، او هر څیز یې په یوه خاصه اندازه او هیئت سره ایښي او پیدا او تیار کړي دي، چې له هغو څخه همغه خواص او افعال ظاهرېږي، چې د هغوی لپاره همغه پیدا شوي دي، او هیڅ یو څیز له خپلې دائرې څخه د باندې قدم نشي کېښودی، او نه پخپلو حدودو کې د عمل او تصرّف د فطري موزونیت په لحاظ د لږ تزیید او تنقیص ځای په کې شته، او نه د هغه په کوم وصف او خصوصیت کې د اعتراض او ګوتې کېښودلو موقع شته، د ساینس لوی لوی پوهان د ده د حکمت په سیندونو کې غوټې وهي، خو په پای (آخر) کې دوی په دغه وینا سره مقر او معترف کېږي: ﴿صُنْعَ اللّٰهِ الَّذِيْ اَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ﴾ ﴿فَتَبٰرَكَ اللّٰهُ اَحْسَنُ الْخٰلِقِيْنَ﴾.

وَاتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِهٖ اٰلِهَةً لَّا يَخْلُقُوْنَ شَيْئًا وَّهُمْ يُخْلَقُوْنَ وَلَا يَمْلِكُوْنَ لِاَنْفُسِهِمْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا يَمْلِكُوْنَ مَوْتًا وَّلَا حَيٰوةً وَّلَا نُشُوْرًا ﴿۳﴾

او نيولي دي دغو (كفّارو) بې له الله نور معبودان چې نشي پيدا كولى (دغه معبودان) هيڅ شى، حال دا چې دوى پخپله پيدا كاوه شي، او نه دي مالكان لپاره د ځانونو خپلو د ضرر (د دفع كولو)، او نه د نفعې (د رسولو)، او نه دي مالكان په وژلو د چا، او نه په ژوندي كولو د چا، او نه په بيا ژوندي پورته كولو د مړيو (له قبورو بعث ته).

تفسير: يعنې د څومره ظلم، تعجّب او حيرت مقام دى، چې داسې مطلق قادر كافي نه ګڼي، او خپلو ځانونو ته د نورو معبودانو او حاكمانو تجويزونه كوي، او داسې تصوّر كوي چې ګواكې دوى هم د الله تعالى په حكومت كې د برخې خاوندان دي، حال دا چې د هغو بېچارګانو خپل وجود هم له خپله كوره نه دى، او نه پر خپل ځان د تصرّف او اختيار خاوندان دي، او نه د كومې ذرې شي د پيدا كولو واك او اختيار لري، او نه ژوندي كول او وژل د دوى په قبضه او واك كې دي، او نه په خپل مستقبل اختيار سره چاته لږ څه نفع يا نقصان رسولى شي، بلكه د خپلو ځانونو لپاره هم د يوې ذرې په برابر د ګټې (فائدې) د حاصلولو يا له نقصان څخه د ځان ساتلو هم قوّت او قدرت نه لري، نو د داسې ضعيفو، عاجزو او مجبورو شيانو د الله تعالى سره شريك بلل څومره لوى سفاهت او انتهايي بېحيايي ده.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ افْتَرَاهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ آخَرُونَ ۖ فَقَدْ جَاءُوا ظُلْمًا وَزُورًا ﴿٤﴾

او وايي هغه كسان چې كافران شوي دي: نه دى دا (قرآن) مګر دروغ دى، چې له ځانه يې جوړ كړى دى دغه (محمد)، او كومك ورسره كړى دى په دې (دروغ جوړولو كې) قومونو نورو، (نو فرمايي الله): پس په تحقيق راتلل كړي دي (دغو كفّارو) په ظلم او په دروغو سره.

تفسير: يعنې كافرانو به ويل چې دا تشې د خولې خبرى دي چې قرآن د الله تعالى كتاب دى معاذ الله محمد صلى الله عليه وسلم دڅو تنو يهودانو په مدد يو كلام تيار كړي دى او هغه له خپله ځان جوړ كړي دروغ د الله تعالى په طرف مسوب كوى دي نو الله تعالى ورته وفرمايل چې له دې نه به لوى ظلم او دروغ نور څه وي چې داسې معجز كلام او حكيم كتاب ته چې د هغه صداقت او عظمت له لمر څخه زيات روښان دي افتراء او دروغ وويل شي.

وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٥﴾

او وايي (كفّار) دا قصې دي د ړومبنيو خلقو چې ليكلي دي هغه (محمد) پر ليكونكو، پس هغه لوستل كيږي په ده (لپاره د ليكلو) سبا او بېګا.

تفسير: يعنې كفّارو به داسې ګڼل چې محمد صلى الله عليه وسلم له اهل الكتاب څخه څه قصې او خبرې اورېدلي دي، او د هغو ياداشت يې نيولى دى، يا په بل چا باندې يې د هغو ياداشت اخيستى دى، چې هم هغه ياداشتونه شپه او ورځ د ده په مخ كې پراته دي او يادوي يې، او بيا يې په نويو نويو اساليبو اړوي راړوي، نور هيڅ شى نه دى.

قُلْ أَنْزَلَهُ الَّذِي يَعْلَمُ السِّرَّ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ إِنَّهُ كَانَ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿٦﴾

ووايه (اى محمده ! دغو كفّارو ته: نه ده داسې، بلكه) نازل كړى دى دا قرآن هغه (الله) چې عالم دى په هرو پټو چې په اسمانونو او په ځمكه كې دي، بېشكه چې الله دى ښه مغفرت كوونكى (د خطيّاتو) ډېر رحم كوونكى دى.

تفسير: يعنې دغه پاك قرآن پخپله راښيي چې هغه د كوم انسان يا د كومې ټولنې له خوا جوړ شوى دى؟ كه نه دى؟ داسې نه دى چې تاسې يې وايئ، بلكه دغه عظيم الشأن قرآن پخپله دا خبره ثابتوي چې دغه د هم هغه الله تعالى له

جانبه نازل شوی دی، چې د ده د علمي احاطې څخه د اسمانونو او د ځمکو هیڅ یو شی نشي خارجېدلی، د ده معجز کلام، فصاحت او بلاغت، علوم او معارف، غیبیه اخبار، احکام او قوانین، او هغه مکنونه چې د هغو اعماقو او زاویاوو ته هیڅوک بې د الله له توفیقه نشي رسېدلی، او ګرد عقول او افهام د هغو له پوهې عاجز او ناتوانه دي، پخپله الله تعالی دغه خبره صافه څرګندوي چې دغه د کوم محدود علم والا انسان بیان یا د کوم جعلي جمعیت کلام نه دی، بلکه دغه قرآن یې پخپل بخشش او مهرباني سره نازل کړی دی (موضح القرآن).

وَقَالُوا مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ ۙ لَوْلَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مَلَكٌ فَيَكُونَ مَعَهُ نَذِيرًا ۝٧ أَوْ يُلْقَىٰ إِلَيْهِ كَنْزٌ أَوْ تَكُونُ لَهُ جَنَّةٌ يَأْكُلُ مِنْهَا ۚ وَقَالَ الظَّالِمُونَ إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا رَجُلًا مَسْحُورًا ۝٨

او وایي (کُفّار) چې څه دي دغه رسول ته چې خوري طعام، او ګرځي په بازارونو کې (لکه نور خلق لپاره د طلب د معاش)، ولې نه نازلاوه شي ده ته یو ملک، پس شي دغه (ملک) له دغه (رسول) سره ویروونکی (د کفّارو له جحیمه)؟. یا (ولې نه) غورځولی کېږي ده ته خزانه (له آسمانه)؟ یا (ولې نه) کېږي ده ته یو باغ چې خوري له (مېوو او حاصلاتو د) هغه، او وایي (دغه) ظالمان (مؤمنانو ته) چې متابعت نه کوئ تاسې مګر د یوه سړي چې سحر پرې کړی شوی دی (او مغلوب العقل دی).

تفسیر: یعنې کفّارو به دغسې ویل کله چې دغه د نبوّت مدعي څمونږ په شان ډوډۍ خوري، او څمونږ په شان د بیع او شراء (پیرودلو او پلورلو) لپاره بازارونو ته ځي؛ نو څمونږ او د ده په منځ کې څه فرق پاتې شو؟ که دی په رښتیا سره رسول وي؛ نو ښایي د پرښتو په شان له خوراکونو او له څښلو اود دنیوي معاشونو له جګړو او جنجالونو څخه لرې او خلاص وي.

یعنې که د پرښتو فوځونه ورسره نه وي؛ نو اقلاً د پاک الله له طرفه یوه دوه پرښتې خو تش د ده د تصدیق او د رُعب او داب قائمولو لپاره د ده سره تل ګرځېدی او اوسېدی، چې د هغې د لیدلو څخه به هرومرو خلق ورته متمائل کېدل، ښه که پرښتې د ده سره نشته؛ نه دې وي، خو له دې دعوی سره دا خبره متناسبه وه، چې ده اقلاً له اسمانه د سرو زرو یا سپینو زرو کومه غیبي خزانه موندلې او وررسېدلې وی، چې له هغې ځنې ده په خلاص لاس سره ښه مال او دولت صرفولی او د بازار له تګ راتګ او د معاش د تحصیل له جنجاله خلاص وی، د ګردو خلقو فکر او توجّه یې د دغې ورکړې او سخا له پلوه خپل ځان ته ورکش کړي وی، خیر ! که دغه هم ورسره نشته؛ نو د عادي مشرانو او معمولي رئیسانو او د ځمکې د خاوندانو په شان د انګورو (کورو) او خرماوو (کجورو) او د نورو مېوو له باغونو څخه د یوه باغ خاوند خو وی، چې له هغه څخه یې که نورو ته څه شی نه ورکولی؛ اقلاً دی پخپله خو د خوړلو او څښلو او خپلو نورو ضروریاتو څخه بې فکره او بې پروا کېدی، نو هر کله چې له دغو ګردو شیانو څخه د هیڅ یو څیز مالک نه دی نو څرنګه باور او یقین کولی شو مونږ پرې چې دالله تعالی رسول دي، نو معلومه شوه چې دده ماغزه خراب دي او یا بل چا پرې کوډې او جادو کړې دی.

انْظُرْ كَيْفَ ضَرَبُوا لَكَ الْأَمْثَالَ فَضَلُّوا فَلَا يَسْتَطِيعُونَ سَبِيلًا ۝٩

وګوره (ای محمده !) څرنګه بیانوي (تړي دغه معاندان) تاته مثالونه ( د شعر، سحر، کذب) پس ګمراهان شول دوی، پس طاقت نه لري دوی (حق ته د موندلو) د لارې.

تفسير: يعنې كفار كله وايي: د ده خبرې محض مفترياتې دي، كله دعوى كوي چې نه ! دى دغه خبرې له نورو څخه زده كوي، او بيا يې په خپل قالب كې اچوي، كله دوى ته مسحور وايي، كله يې ساحر بولي، كله كاهن، كله شاعر، كله يې مجنون ګڼي، دغه اضطراب او وارخطايي پخپله دغه خبره څرګندوي چې له دغو خبرو څني يوه خبره هم پر دوى نه منطبقه كيږي، نو ځكه د دوى فكر هم پر يوه خبره نه دى ټينګ شوى، او د الزام لګولو هيڅ يوه چاره او لاره يې نه ده موندلې، هغه كسان چې د انبياوو عليهم السلام په شان كې داسې سپين سترګي او ګستاخي او بې ادبي كوي او ګمراه كيږي؛ د دوى د هدايت په نسبت نور هيڅ توقّع او هيله نشته.

تَبٰرَكَ الَّذِيْٓ اِنْ شَآءَ جَعَلَ لَكَ خَيْرًا مِّنْ ذٰلِكَ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ وَيَجْعَلْ لَّكَ قُصُوْرًا ۝۱۰

ډېر لوى بركتناك څښتن (خاوند) د ډېر خير او پورته دى هغه (ذات) كه اراده وفرمايي؛ ګرځوي به تاته (په دنيا كې) خير بهتر غوره له دغې (خزانې او باغونو، داسې) باغونه چې بهيږي له لاندې (دو نو) د هغو ويالې، او ګرځوي به تاته (په دغو باغونو كې) بنګلې.

تفسير: يعنې د الله تعالى په خزانه كې هيڅ تقليل او كمى نشته، كه الله جل جلاله اراده وفرمايي، يو باغ څه شى دى، ډېر زيات باغونه به له دغو اوصافو او صفاتو څخه لا ښه درعنايت كړي، چې دغه خلق د هغه مطالبه كوي، بلكه الله تعالى پر دې هم قادر دى، چې د آخرت هغه ګرد باغونه او نهرونه او حور او قصور اونور چې در كول كيږي؛ همدلته درعطاء كړي، ليكن د الله تعالى حكمت بالفعل د دې خبرې مقتضي نه دى، ځكه كه د دغو معاندينو هم دغه ګردې غوښتنې او فرمايشونه هم پوره او تكميل كړل شي؛ خو بيا هم دوى د حق منونكي او د صداقت قبلوونكي نه دي، باقي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د صداقت د تثبيت لپاره هغه دلائل او معجزات چې دروړاندې كړى شوي؛ هغه كافي دي.

بَلْ كَذَّبُوْا بِالسَّاعَةِ وَاَعْتَدْنَا لِمَنْ كَذَّبَ بِالسَّاعَةِ سَعِيْرًا ۝۱۱

بلكه نسبت د دروغو كوي (كفّار) په قيامت باندې (چې نشته)، او تيار كړى دى مونږ لپاره د هغه چا چې نسبت د دروغو كوي په قيامت باندې سخت اور (د دوزخ).

تفسير: يعنې دغه خلق چې د هغو شيانو مطالبه كوي؛ هغه في الحقيقت د حق د طلب په نيت نه دي، بلكه محض د شرارت لپاره داسې كوي، او د دوى د دې شرارت سبب دا دى چې هغوى تر اوسه پورې په قيامت او د قيامت په سزا او جزا يقين او باور نه لري، نو دوى دې دغه خبره ښه په ياد ولري، چې د دوى له دغه تكذيبه څخه هيڅ شى نه جوړيږي، او قيامت خامخا راتلونكى دى، او د مكذبينو لپاره هغه د اور بنديخانه چې لا له پخوا څخه تياره كړى شوې ده؛ دوى خامخا په همغې كې لويدونكي دي.

اِذَا رَاَتْهُمْ مِّنْ مَّكَانٍۭ بَعِيْدٍ سَمِعُوْا لَهَا تَغَيُّظًا وَّزَفِيْرًا ۝۱۲

كله چې ووينې (دغه اور) دوى له هغه ځاى لرې؛ نو اوري به دوى (دغه اور) لره خوټكېدل (له ډېره قهره) او غورېدل (له ډېره غضبه).

تفسير: يعنې د دوزخ اور په محشر كې كله چې جهنّميان له لرې څخه ووينې؛ په ډېر جوش او خروش راځي، د هغه له غضبناكو غرړونو او خوفناكو نارو سورو او بدرنګه خوټكېدلو څخه د ډېرو زورورو مېړو او زړه ورو سړيو تريخي چوي، او لړمون خوړيني كيږي.

وَإِذَآ أُلْقُوا۟ مِنْهَا مَكَانًا ضَيِّقًا مُّقَرَّنِينَ دَعَوْا۟ هُنَالِكَ ثُبُورًا ﴿١٣﴾

او کله چې وغورځولی شي (کفّار) له دوزخ نه په ځای تنګ کې، په دغه حال کې چې (څو تنه یو ځای سره نژدې په ځنځیرو) سره تړلي شوي وي؛ نو په دغه ځای بولي دوی هلاک (خپل)، د هلاکت غوښتلو چیغې به وهي.

تفسیر: یعني په دوزخ کې به د هر مجرم لپاره ځان ته ځای وي، چې له هغه ځخه به له سره نشي خوځېدی، او د یوه نوعیت څو څو مجرمان به په یوه ځنځیر کې سره تړل کیږي، په دغه وخت کې به مجرمین د مصیبت او عذاب له وېرې مرګ ته نارې وهي، چې کاشکې مرګی راشي، او مونږ ته له دغو مصائبو او بلیّاتو ځخه نجات راکړي.

(نو وبه ویل شي دغو کفّارو ته له جانبه د الله تعالی جل وعلا شأنُه وعظم برهانُه داسې چې:)

لَّا تَدْعُوا۟ ٱلْيَوْمَ ثُبُورًا وَٰحِدًا وَٱدْعُوا۟ ثُبُورًا كَثِيرًا ﴿١٤﴾

مه غواړئ مه بولئ تاسې نن ورځ هلاکت یو، او وبولئ تاسې هلاکتونه ډېر (ځکه چې عذاب مو ډېر اقسام لري).

تفسیر: یعني که یو کرت مړه شو، او له دغه مصیبت ځخه خلاصي ومومو؛ ځکه په هره ورځ کې له زرو کرتو ځخه زیات له مرګه بد حال راپه برخه کیږي (موضح القرآن).

قُلْ أَذَٰلِكَ خَيْرٌ أَمْ جَنَّةُ ٱلْخُلْدِ ٱلَّتِى وُعِدَ ٱلْمُتَّقُونَ ۚ كَانَتْ لَهُمْ جَزَآءً وَمَصِيرًا ﴿١٥﴾ لَّهُمْ فِيهَا مَا يَشَآءُونَ خَٰلِدِينَ ۚ كَانَ عَلَىٰ رَبِّكَ وَعْدًا مَّسْـُٔولًا ﴿١٦﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) آیا دغه (خیر بهتر غوره دی) یا هغه جنّت د همېشه والي چې وعده کړی شوې وه (د دغه جنت) له پرهېزګارانو سره، چې دی (هغه جنّت په علم د الله کې) دوی ته جزاء (بدل) د عمل او ځای د ورتلو. شته دوی ته په دغه (جنّت) کې هر څه چې غواړي دوی حال دا چې تل به وي دوی په کې، دی (دخول د جنّت سره له خلوده) پر رب ستا موعوده (وعده کړی شوې تفضّلاً له جانبه د الله) غوښتلی شوی (له جانبه د مؤمنانو).

تفسیر: یعني د مکذبینو انجام مو واورېد، اوس تاسې پخپله د دغې خبرې فیصله وکړئ، چې آیا دغه موخوښ او پسند دی؟ که هغه وعده چې له متّقینو مؤمنینو سره له جانبه د الله تعالی کړی شوې ده؟ (او غوښتلې شوې ده له جانبه د مؤمنانو، او مؤمنان به هم) همغه شی غواړي چې د دوی له مرتبې سره وړ، لایق او مناسب وي.

له ﴿وَعْدًا مَّسْـُٔولًا﴾ ځخه حتمي وعده مراده ده، چې الله تعالی هغه پخپل فضل او کرم سره پخپله ذمه اخیستې ده، یا دا مطلب چې متّقین به د هغې وعدې د ایفاء سوال وکړي، چې یقیناً به پوره کیږي، لکه چې په دعاء کې راغلي دي: ﴿رَبَّنَا وَءَاتِنَا مَا وَعَدتَّنَا عَلَىٰ رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۗ إِنَّكَ لَا تُخْلِفُ ٱلْمِيعَادَ﴾.

وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ فَيَقُولُ ءَأَنتُمْ أَضْلَلْتُمْ عِبَادِى هَٰٓؤُلَآءِ أَمْ هُمْ ضَلُّوا۟ ٱلسَّبِيلَ ﴿١٧﴾

او (یاده کړه ای محمده هغه) ورځ چې راجمع به کړي (الله) دغه (کفّار) او هغه (باطل معبودان) چې عبادت کاوه دوی غیر له الله (هغوی ته)، پس وبه وایي (الله دغو معبودانو ته:) آیا تاسې ګمراه

کړي وو بندګان ځما دغه (چې مشرکان) دي؟ او که دوی پخپله ورکه کړې وه لاره (د حق بې له سعيې د تاسې)؟.

تفسير: يعني دغه خو عابدينو ته اورول کيږي، او بالوسيله به له معبودانو څخه پوښتنه کيږي، چې آيا تاسې دوی ته د شرک يا د خپل عبادت دعوت او ترغيب ورکړی وو؟ يا دوی له خپله جهله او حماقته او غفلته او بې توجهی څخه ګمراه شوي دي.

قَالُوا سُبْحٰنَكَ مَا كَانَ يَنْۢبَغِيْ لَنَآ اَنْ نَّتَّخِذَ مِنْ دُوْنِكَ مِنْ اَوْلِيَآءَ

وبه وايي (معبودان) چې: پاکي ده تاته له شريکه او له عيوبو، نه ښاييږي مونږ ته دا چې ونيسو مونږ غير له تا نه (يا الله) هيڅ دوستان.

تفسير: يعني يا الله ! مونږ څه قوت، قدرت او مجال درلود چې ستا د مقدّس ذات څخه په ځنګ شوي نور کسان خپل ملګري يا دوستان نيولي وي؟ بيا کله چې مونږ د خپلو نفسونو لپاره ماسوا له تا بله کومه هيله او اسره او اميد نه درلود؛ نو نورو ته به مو ولې داسې حکم ورکاوه چې راشئ مونږ خپل معبود او مقصود او حاجت ورکوونکي وګڼئ؟.

وَلٰكِنْ مَّتَّعْتَهُمْ وَاٰبَآءَهُمْ حَتّٰى نَسُوا الذِّكْرَ ۚ وَكَانُوْا قَوْمًاۢ بُوْرًا ﴿۱۸﴾

وليکن ښه معاش ورکړی وو تا (ای الله !) دوی ته او پلرونو د دوی ته، تر هغه پورې چې هېر کړ دوی پند (کتاب) ستا، او وو دوی (په حکم د تا) قوم هلاکېدونکی.

تفسير: يعني اصل دا دی چې دغه بدبختان د خپل بد استعداد لامله د خپلو ځانونو د تباه کولو لپاره منډې وهي، او د دوی لپاره هلاکت مقدّر شوی دی، د هغو ظاهري سبب دا دی چې دوی په عيش او آرام او د غفلت په نشو کې ډوب تللي دي، او دغه ستا يادونه او تذکره هيروي، او هيڅ پند او نصيحت ته غوږ نه ږدي، او د انبياوو د هدايت او ارشاد څخه بيخي سترګې پټوي، او پر دنيوي تمتع او منافعو مغرور شوي دي، تاسې که د خپلې مهرباني لامله هومره فوايد دوی ته او د دوی پلرونو او نيکونو ته وررسوئ؛ هغومره دوی په خپل غفلت او نسيان کې ترقي کوي.

(الله تعالی جلّ و علا شأنُه وعظُم برهانُه به بيا دغو بُت پرستانو ته دغسې وفرمايي):

فَقَدْ كَذَّبُوْكُمْ بِمَا تَقُوْلُوْنَ ۙ فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا وَّلَا نَصْرًا ۚ وَمَنْ يَّظْلِمْ مِّنْكُمْ نُذِقْهُ عَذَابًا كَبِيْرًا ﴿۱۹﴾

نو په تحقيق دروغجنان کړئ (معبودانو مو) تاسې (ای مشرکانو) په هغه خبره کې چې ويله تاسې (چې دغه مو معبودان دي)، پس طاقت نه لرئ تاسې د ګرځولو د عذاب (له خپله ځانه)، او د مدد کولو (يو له بله سره)، او هر هغه چا چې ظلم وکړ له تاسې؛ وبه څکوو مونږ هغه ته عذاب لوی.

تفسير: دغه به د الله تعالی له جانبه ارشاد وي، چې درواخلئ ! د هغو په امداد او اعانت چې تاسې اعتماد کړی وو، هغوی بالذات ستاسې د دغې ادعاء ترديد او تاسې دروغجنوي، او ستاسې له دغو حرکاتو څخه په ښکاره ډول سره د بېزاری او نفرت اظهار کوي.

﴿فَمَا تَسْتَطِيْعُوْنَ صَرْفًا وَّلَا نَصْرًا﴾ «پس طاقت نه لرئ تاسې د ګرځولو د عذاب له خپله ځانه، او نه د مدد کولو يو له بله سره»، يعني نن نه د الله تعالی دعذاب مخه بېرته ګرځولی شئ !، او نه د هغه احکام اړولی شئ، اونه يو له بل سره څه

مدد او مرسته کولی شئ، هر چاته چې هره سزا وررسېدونکې ده؛ هغه اوس وررسيږي، نو هغه دې هلته پروت وي، او د هغه خوند او مزه دې وڅکي !، ښايي له ظلم څخه دلته په ﴿وَمَن يَظْلِم مِّنكُمْ﴾ کې مراد شرک وي، او ممکن دی چې نور هر قسم ظلم او ګناه هم ترې مراد وي.

وَمَآ أَرْسَلْنَا قَبْلَكَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ إِلَّآ إِنَّهُمْ لَيَأْكُلُونَ الطَّعَامَ وَيَمْشُونَ فِي الْأَسْوَاقِ ۗ وَجَعَلْنَا بَعْضَكُمْ لِبَعْضٍ فِتْنَةً أَتَصْبِرُونَ ۗ وَكَانَ رَبُّكَ بَصِيرًا ﴿٢٠﴾

او نه دي ليږلي مونږ پخوا له تانه (ای محمده ! هيڅوک) له مرسلانو څخه (په هيڅ کيفيت) مګر (په دغه کيفيت سره چې) بېشکه دوی خامخا خوړل به دوی طعام، او ګرځېدل به دوی په بازارونو کې (لپاره د مطالبو خپلو)، او ګرځولي دي مونږ ځيني د تاسې د ځينو نورو لپاره آزموينښت، آيا صبر کوئ (ای اهل الابتلاء که نه؟ بلکه صبر وکړئ !)، او دی رب ستا ښه ليدونکی.

تفسير: دغه جواب شو د ﴿وَقَالُوا مَالِ هَٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ﴾ الآية ـ يعنې له تاسې څخه پخوا هومره انبياء چې د خلق الله په طرف مبعوث شوي دي؛ هغه ټول انسانان وو، او د انسانانو په شان به يې خوړل او څښل، او د خپلو ضررورياتو او د اعاشې د لوازمو لپاره به بازارونو ته هم تلل، او هغوی مې له سره د پرښتو په حيثيت نه دي ليږلي، چې د اکل او شرب او د ژوندانه له ضروورياتو څخه به مستغني وو، له دې نه معلوميږي چې د خپلو ضروورياتو لپاره بازارونو ته د نه ورتلو منشأ کبر، غرور او ځان لوی ګڼل دي، نو دغه د لويي او مشرتوب پر خلاف دی.

﴿وَجَعَلْنَا﴾ الآية ـ يعنې انبياء د دې لپاره دي؛ چې د کفّارو د کُفر، ايمان، بغاوت، او طغيان امتحان او آزموينه وکړي، او انبياء د دې لپاره دي چې د دوی د صبر، ثبات، استقامت، آزموينه او امتحان وشي، نو اوس دې وکتل شي ! چې د کفارو د دغه سفاهت او جهالت د ليدلو او د دغه طعن او تشنيع او لغو اعتراضاتو د اورېدلو په مقابل کې تاسې تر کومې اندازې پورې صبر، استقامت او استقلال ښکاره کولی شئ؟.

وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَآءَنَا لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَٰٓئِكَةُ أَوْ نَرَىٰ رَبَّنَا ۗ لَقَدِ اسْتَكْبَرُوا فِيٓ أَنفُسِهِمْ وَعَتَوْ عُتُوًّا كَبِيرًا ﴿٢١﴾

او وايي هغه کسان چې نه لري اميد د ملاقات ځمونږ (او نه مني قيامت يا نه ويريږي له عذابه ځمونږ): ولې نه نازلولی شي پر مونږ باندې پرښتې (مصدقې د رسول يا چې شي رسولانې مونږ ته؟) يا ولې نه وينو مونږ رب خپل (چې خبرې راسره وکړي او حکم ورکړي مونږ ته په متابعت د رسول، نو الله فرمايي) خامخا په تحقيق کبر کړی دی (کبر چې ثابت دی) په نفسونو د دوی کې، او تېر شوي دي (له حده خپله) په تېرېدلو لويو سره.

تفسير: يعنې هغه کسان چې داسې اميد نه لري چې يوه ورځ به ځمونږ په مخ کې د حساب او کتاب لپاره حاضريږي، نو هغوی د سزا له وېرې بيخي بې خوفه دي، او داسې د عناد او ګستاخۍ خبرې کوي، او چټې (بېکاره) وييږي، مثلا وايي چې: د محمد په شان پر مونږ ولې پرښتې وحي نه راوړي؟ يا پخپله الله تعالی ولې له مونږه سره خبرې نه کوي؟ يا اقلاً د تصديق لپاره خو يوه پرښته راغلې وی؟ يا مونږ پخپلو سترګو سره ښايي الله ووينو، او په خپلو غوږونو سره ستا د دغې دعوی تصديق او تأييد ترې واورو، لکه چې د ۸ جزء د «الأنعام» سورت په (۱۵) رکوع (۱۲۴) آيت کې راغلي دي: ﴿قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَآ أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ﴾ او په ۱۵ جزء د «الاسراء» سورت په (۱۰) رکوع (۹۲) ايت کې مرقوم دي: ﴿أَوْ تَأْتِيَ بِاللَّهِ وَالْمَلَٰٓئِكَةِ قَبِيلًا﴾.

دوی په خپلو زړونو کې خپل ځان ډېر لوی ګڼي؛ نو ځکه د وحي او پرښتو د نزول تمنّا لري، د دوی شرارت او سرکشي خپلې انتهايي درجې ته رسېدلې ده، چې سره له دومره سختو ګناهونو او تورو عملنامو غواړي چې په دنيا کې پخپلو سترګو سره الله تعالی ووينې، او له هغه سره د غرېدلو شرف ځان ته مطالبه کړي.

يَوْمَ يَرَوْنَ الْمَلٰٓئِكَةَ لَا بُشْرٰى يَوْمَئِذٍ لِّلْمُجْرِمِيْنَ وَيَقُوْلُوْنَ حِجْرًا مَّحْجُوْرًا ﴿۲۲﴾

(ياد کړه ای محمده !) هغه ورځ چې ووينې دوی پرښتې (د عذاب)؛ نه به وي زېری (خوشالي) په دغه ورځ کې لپاره د مجرمانو (کافرانو)، او وبه وايي دوی چې: چېرې دې منع کړل شي په کوم مانع سره.

تفسير: ﴿حِجْرًا﴾ په معنی د منع ده، او ﴿مَّحْجُوْرًا﴾ يې تأکيد دی، معنی يې داسې شوه: «او وبه وايي دغه کفّار چې منع غواړو ټينګه منع له ليدلو د ملائکو د عذابه، او پناه نيسو په الله تعالی پورې له ملاقاته د ملائکو په منع د مانع سره»، يا به يې معنی داسې وي: «او وبه وايي دغه ملائک دغو کفّارو ته چې حرام دی يا حرام کړی شوی دی پر تاسې جنّت او منع دی په مانع سره»، او لنډ مطلب يې داسې شو چې: ای کفارو ! يوه داسې ورځ هم راتلونکې ده چې ستاسې سترګې به په پرښتو ولګيږي، مګر پرښتې به ستاسې په شان د مجرمانو له ليدلو څخه نه خوښيږي، بلکه تاسې به له ډېرو سختو هولناکو مصائبو سره مخامخ کېږئ، دغه خلق چې اوس د پرښتو د نزول مطالبې کوي، په هغه وخت کې به د ﴿حِجْرًا مَّحْجُوْرًا﴾ په ويلو پناه غواړي.

تنبيه: ممکن دي چې دغه تذکره د احتضار او ځنګدن (موت) په وخت کې وي، لکه په (۱۰) جزء د «الأنفال» سورت په (۷) رکوع (۵۰) آيت کې راغلي دي: ﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذْ يَتَوَفَّى الَّذِيْنَ كَفَرُوا الْمَلٰٓئِكَةُ يَضْرِبُوْنَ وُجُوْهَهُمْ وَاَدْبَارَهُمْ﴾، او په ۷ جزء د «الأنعام» سورت په (۱۱) رکوع (۹۳) آيت کې راغلی دی: ﴿وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَاسِطُوْٓا اَيْدِيْهِمْ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ﴾ ګواکې همدغه کيفيت به د ده په مقابل کې هم وي، چې د حم السجده سورت په (۴) رکوع (۳۰) آيت (۲۴) جزء کې بيان شوی دی: ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ﴾ او ممکن دي چې دلته د قيامت د ورځې ذکر وي، والله أعلم.

وَقَدِمْنَآ اِلٰى مَا عَمِلُوْا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنٰهُ هَبَآءً مَّنْثُوْرًا ﴿۲۳﴾

او اراده کړې ده، رسېدلي يو مونږ هغو شيانو ته چې کړي دي (دغو کفّارو) له (نېک) عمل نه پس وبه ګرځوو مونږ هغه (نېک عمل په شان د) ذراتو د ګرد خورې شوې (ګرد تار په تار کړی شوې).

تفسير: يعنې دوی مونږ ته نارې وهلې، او مونږ يې په کار وو، دغه دی مونږ ور حاضر شو، مګر د دوی د عزّت د زيادت لپاره نه بلکه د دې لپاره چې هغه کارونه چې دوی پخپل باطل زعم سره نېکي ګڼلې؛ هغه ورته قطعًا ګډوډ او خراب تراب کړو، او داسې بې حقيقته او بې ثمره او د وړې په شان يې په هوا کې والوځوو، لکه چې د خاورې حقير ذرات دي دا خوا او هغه خوا الوځي، ځکه چې هغه اعمال د اخلاص او ايمان له روحه بيخي تش او د حق له طريقه سره بالکل متضادّ واقع شوي دي، لکه ځنګه چې د ۱۳ جزء د ابراهيم سورت د (۳) رکوع په (۱۸) آيت کې راغلي دي: ﴿مَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ اَعْمَالُهُمْ كَرَمَادِ ِاشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيْحُ فِيْ يَوْمٍ عَاصِفٍ﴾.

اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مُّسْتَقَرًّا وَّاَحْسَنُ مَقِيْلًا ﴿۲۴﴾

صاحبان (ملګري) د جنّت په دغه ورځ (د قيامت کې به بهتر غوره) وي له جهته د (ځای د قيام او کلام او) هستوګنې، او ډېر ښه به وي له جهته (د ځای) د خوب د غرمې (او د راحت).

**تفسير:** يعني دغه منکران به د هغې ورځې په مصيبت کې ګرفتار او اخته کيږي، چې اوس دوی پر مؤمنانو ملنډې (خندا) وهي، او مسخرې پرې کوي، نو پر دغو مؤمنانو چې دوی خاندي؛ هغوی به په جنت کې عيش او عشرت او مزې کوي.

﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَآءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلٰٓئِكَةُ تَنْزِيلًا﴾ ۲۵

او (ياد کړه ای محمده !) هغه ورځ (د قيامت) چې ټوټې ټوټې به شي اسمان په وريځو سره، او نازلې به کړی شي پرښتې په نازلولو سره (پرله پسې).

**تفسير:** په دې آيت کې د قيامت د ورځې د ځينو سختو حالاتو يادونه شوېده، الله تعالی به د اسمانونو له پاسه د وريځو په سيورو کې راښکته شي، چې اسمانونه به له هغې لامله وچوي، او ملائکې به هم د هر يو اسمان څخه وار په وار د محشر ميدان په لور راښکته شي، الله تعالی به د بندګانو په منځ کې د عدل فيصله وکړي، په هيڅا به هيڅ راز ظلم نه کيږي، په احاديثو کې د دې واقعاتو مفصل بيان شوی دی، په (۲) جزء د البقره سورت د (۲۵) رکوع د (۲۱۰) آيت په تفسير کې هم داسې يو مضمون ليکلی شوی دی: ﴿هَلْ يَنْظُرُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيَهُمُ اللّٰهُ فِيْ ظُلَلٍ مِّنَ الْغَمَامِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ﴾ الآية.

﴿اَلْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ اِلْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ ۚ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكٰفِرِيْنَ عَسِيْرًا﴾ ۲۶

ملك (او کامل سلطنت) په دغه ورځ (د قيامت کې) حق ثابت دی لپاره د رحمن، او وي به دغه ورځ (د قيامت) پر کفّارو ډېره سخته.

**تفسير:** يعني ظاهرًا او باطنًا صورةً او معنىً من کلّ الوجوه يواځې د هم ده «رحمان» سلطنت او حکومت به وي، او صرف د هم ده حکم به چليږي: ﴿لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۖ لِلّٰهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ﴾ (۲۴ جزء د المؤمن سورت (۲) رکوع (۱۶) آيت)، بيا کله چې د «رحمان» حکومت شو، هغه کسان چې د رحمت مستحقان وي؛ نو هغوی ته به د رحمت څه کمی وي، دوی به په بې حسابه نعمتونو سره د مرحمت مورد ګرځي، مګر سره له دومره زيات او لامحدود رحمت کفّارو ته به په دغه ورځ کې سخت مشکلات او مصائب ور د مخه کيږي.

﴿وَيَوْمَ يَعَضُّ الظَّالِمُ عَلٰى يَدَيْهِ يَقُوْلُ يٰلَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلًا﴾ ۲۷

او (ياد کړه ای محمده ! هغه د قيامت) ورځ چې خوله به لګوي ظالم پر دواړو لاسونو خپلو (له ډېره غمه او افسوسه او حسرته)، وايي به (په قيامت کې): ای کاشکې نيولې مې وی له رسوله (د الله سره د نجات حقه) لاره.

**تفسير:** يعني له ډېر حسرت او ندامت نه به خپلې ګوتې چيچي، او د افسوس او ارمان لاسونه به سره مږي، او په زيات تأسّف سره به وايي، چې ولې مې په دنيا کې د الله تعالی او د رسول الله أحکام ونه منل؟ او ولې د شياطين الجن والانس په خبرو وغولېدم، چې په دغه بده ورځ اخته او په راز راز مصائبو کې لتاړ شوم.

﴿يٰوَيْلَتٰى لَيْتَنِيْ لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيْلًا﴾ ۲۸

ای هلاکه ای عذابه ای خرابی ځما (راشه دغه دې وخت دی) کاشکې نه مې وی نيولی فلانکې سړی دوست خپل.

تفسير: يعنې د هغو كسانو د دوستۍ يا اغواء څخه چې ګمراه شوي وو، يا په ګمراهۍ كې يې ترقي كړې وه؛ نو په هغه وخت كې به ډېر افسوس او ارمان كوي، چې ولې مو داسې كسان خپل دوستان ګڼل، كاشكې څما او د دوی په منځ كې له سره دوستي او رفاقت نه وی پيدا شوی.

تنبيه: مفسّرينو چې دلته د عُقبه بن أبي معيط او د أبي بن خلف كومه واقعه نقل كړې ده، د هغې هيڅ ضرورت نشته، او نه ښايي چې د آيت مدلول پر هغه مقصور كړی شي، هو ! دغه تقرير چې مونږ كړی دی، په هغه كې دوی هم داخل دي.

لَقَدْ أَضَلَّنِي عَنِ الذِّكْرِ بَعْدَ إِذْ جَاءَنِي ۗ وَكَانَ الشَّيْطَانُ لِلْإِنسَانِ خَذُولًا ﴿٢٩﴾

خامخا په تحقيق ګمراه كړی (يې) وم زه له ذكره پند (د قرآن) وروسته له هغه كله چې راغی ماته (دغه ذكر، نو فرمايي الله) او دی شيطان لپاره د انسان لغزوونكی غولوونكی.

تفسير: يعنې د رسول الله صلى الله عليه وسلّم پند مونږ ته رسېدلی وو، چې څمونږ د هدايت لپاره كافي وو، او ممكن وو چې هغه څما په زړه كې ځای هم نيولی وی، مګر د دغه كمبخت د دوستۍ لامله زه تباه او برباد شوم، او له زه هغه لوري ته متوجه نشوم، بېشكه چې جنّي او انسي شيطان لوی چلباز او ټګ دی، انسان ته په عين وخت كې فرېب وركوي، او په ډېر بد صورت يې رسوا او مسخره كوي.

وَقَالَ الرَّسُولُ يَا رَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَٰذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا ﴿٣٠﴾

او ويل رسول (د الله محمد) ای ربه څما ! په تحقيق قوم څما نيولی دی دغه قرآن ترک كړی شوی (چې نه پرې ايمان راوړي، او نه پرې عمل كوي، او نه يې لولي).

تفسير: يعنې كله چې ضد كوونكيو او معاندانو په هيڅ صورت سره د هيچا نصيحت او پند ته غوږ نه كېښود؛ دلته رسول الله صلى الله عليه وسلم د الله تعالی دربار ته شكايت وكړ، چې يا اله العالمينه ! څما قوم څما خبرې ته غوږ نه ږدي، دوی د قرآن عظيم الشأن په شان يو لوی كتاب ته خراب نسبتونه كوي، (العياذ بالله) كله چې قرآن لوستل كيږي؛ نو دوی ډېر زيات شورماشور لګوي، او چټي خبرې اترې كوي، او لويه غلغله نښلوي، څو يې هيڅوک وانه وري، او په مطلب يې پوه نشي، په دې ترتيب دغو اشقياوو دغه پاک قرآن په شان يو د قدر قابل كتاب يې بالكل متروک او مهجور ګرځولی دی، او له اعتناء او التفاته يې غورځولی دی.

تنبيه: اګر كه په دغه آيت كې صرف د كفّارو ذكر دی، خو بيا د قرآن نه تصديقول په هغه كې عدم تدبّر او غور نه كول د ده پر احكامو عمل نه كول، د تلاوت څخه غاړه غړول، د ده د قرائت د تصحيح په طرف نه متوجه كېدل، له هغه څخنې اعراض او څنګ كول او د نورو لغوياتو يا حقيرو شيانو په طرف متوجّه كېدل؛ دغه ټول صورتونه درجه په درجه د پاک قرآن د هجران لاندې داخل كېدی شي.

وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا مِّنَ الْمُجْرِمِينَ ۗ وَكَفَىٰ بِرَبِّكَ هَادِيًا وَنَصِيرًا ﴿٣١﴾

او همداسې (لكه چې كفّار مې ستا اعداء ګرځولي دي؟) ګرځولي وو مونږ (پخوا له تانه) لپاره د هر نبي دښمنان له مجرمانو ـ كفّارو، نو صبر وكړه په شان د نورو انبياوو، بس) او كافي دی رب ستا سمه صافه لار ښوونكی او ښه مدد كوونكی (پر اعداوو).

**تفسير:** يعني هغه كسان چې د انبياوو د خبرو په منلو كې مشكلات او موانع وړاندې كوي، او خلق د حق له قبوله منع كوي، همدوى د انبياوو اعداء دي، نو دغه اعداء چې كفّار دي، اګر كه د خلقو پر ضلالت او ګمراه كولو پسې خپلې ملاوې وتړي، څه مهم موفقيت يې نه په برخه كېږي، ځكه د هر چا په نسبت چې الله تعالى داسې اراده وفرمايي چې هدايت ومومي؛ هدايت ور په برخه كوي، يا يې دا مطلب چې د هر چا د هدايت اراده چې پاك الله وكړي؛ هدايت ور په برخه كوي، او د هغو په برخه كې چې هدايت نه وي؛ د هغو ټولو په مقابل كې الله تعالى له تاسره معاونت او مرسته كوي، يا دا چې الله تعالى ستا مدد كوي، او د مطلوب تر مقام پورې به دې رسوي، او هيڅ سد او مانع ستا د پرمختګ مخه نشي نيولى.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ الْقُرْآنُ جُمْلَةً وَاحِدَةً ۚ كَذَٰلِكَ لِنُثَبِّتَ بِهِ فُؤَادَكَ ۖ وَرَتَّلْنَاهُ تَرْتِيلًا ﴿٣٢﴾

او وايي هغه كسان چې كافران شوي دي: ولې نه نازلاوه شي پر دغه (محمد) قرآن ټول يو كرت؟ (نو فرمايي الله چې: نازل كړى دى مونږ) همداسې (لږ لږ د څو فوائدو لپاره چې يوه يې دا ده) چې: ثابت محكم قوي كړو په دغه (قرآن سره) زړه ستا (په حفظ او فهم د معنى د ده سره)، او لوستلى دى مونږ دغه (قرآن پر تا) لږ لږ په آرام لوستلو سره.

**تفسير:** يعني د نبي الله دښمنان د خلقو د ګمراه كولو لپاره داسې تنقيدات او اعتراضات كوي، چې خانه ! ولې د نورو اسماني كتابونو په شان قرآنكريم هم يو ځلې په كامل ډول سره نه نازليږي؟ علّت يې څه دى؟ آيا الله تعالى په كې څه غور او دقّت كوي؟ له دې نه خو داسې شبهې او انديښنې پيدا كيږي، چې ګواكې پخپله محمد صلى الله عليه وسلم په ډېر فكر او انديښنه سره دغه جوړوي، او بيا يې په مناسبه موقع كې لږ لږ اوروي، نو د دغو منكرينو ځواب داسې وركړ شو: چې دغه خو كومه ضروري خبره نه ده، چې قرآن عظيم الشأن د لږ لږ نازلېدو سبب همدغه وي چې تاسې يې وايئ، نو كه لږ څه غور او فكر وكړئ؛ د قرآنكريم په دغه لږ لږ نازلولو كې ډېرې فائدې دي، مثلاً په دغه صورت كې د قرآن مجيد حفظ او يادول ډېر زيات آسانيږي، او په پوهېدلو كې زيات سهولت واقع كيږي، د هر ضرورت په وخت كې د هرې خبرې د ځواب رارسېدلو څخه د رسول الله صلى الله عليه وسلم او مسلمانانو قلوبو ته ارامتيا او تسكين ور په برخه كيږي، او د هر يوه آيت پر نزول ګواكې د ده د اعجاز د دعوى تجديد كيږي، په دغه سلسله كې د جبريل عليه السلام ځو ځو كرته تلل او راتلل هم واقع كيږي، چې هغه في ذاته يو مستقل خير او بركت دى، وغير ذلك من الفوائد؛ د همدغو فوائدو له منځه دلته د ځينو په نسبت اشاره فرمايلې شوې ده.

وَلَا يَأْتُونَكَ بِمَثَلٍ إِلَّا جِئْنَاكَ بِالْحَقِّ وَأَحْسَنَ تَفْسِيرًا ﴿٣٣﴾

او نه كوي دوى راتله تاته كوم مثل (يعني نه راوړي تاته سوال عجيب په ابطال د دين ستا؛) مګر راوړو مونږ تاته (جواب د هغه په واقع او) په حق سره او ډېر ښه تفسير بيان.

**تفسير:** يعني كله چې كفار كوم اعتراض پر قرآن يا پر كوم مثال پر تاسې كوي؛ نو عظيم الشأن قرآن د هغه ځواب په ډېر صاف او ښكاره ډول وركوي، چې په هغه كې هيڅ شان وړاندې وروسته او لاندې باندې نشته، بلكه صاف، واضح، معتدل، او بې غل او بې غش خبره وي، هو ! د هغو كسانو عقل، سد (هوش)، او پوهه چې منعكس او منقلب وي؛ نو هغوى سمې صافې خبرې هم كږوي، او له هغه څخه نور غير مطلوب تعبيرات راكاږي، نو داسې مغرضانه او معاندانه خبرې ببلې دي، او د داسې خلقو آخره خاتمه دغه ده چې پخپله پاك الله يې په دې وروستي آيت كې بيان فرمايي:

﴿الَّذِينَ يُحْشَرُونَ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ إِلَىٰ جَهَنَّمَ أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَأَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٣٤﴾﴾

(دوی) هغه کسان (دي) چې جمع به کړی شي، او شړلی به شي پر مخو خپلو (سرښکته پښې پورته) طرف د دوزخ ته، دغه ټولی بد دی له جهته د ځایه، او ډېر ښوییدلی دی له جهته د لارې، او ډېر ګمراهان دي.

تفسیر: یعنې دوی همغه خلق دي چې د دوی عقل منقلب او چپه (الټه) شوی دی، علویات یې پرېښې، په سفلیه وو غوښتنو پسې ګرځي او متمائل دي، وروسته له دې نه پر داسې څو اقوامو باندې چې څه وقائع او مصائب پېښې او پر هغوی څه حالات چې واقع شوي وو؛ هغه د نورو د عبرت او نصیحت لپاره بیانوي:

﴿وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ وَجَعَلْنَا مَعَهُ أَخَاهُ هَارُونَ وَزِيرًا ﴿٣٥﴾ فَقُلْنَا اذْهَبَا إِلَى الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا
بِآيَاتِنَا فَدَمَّرْنَاهُمْ تَدْمِيرًا ﴿٣٦﴾ وَقَوْمَ نُوحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ أَغْرَقْنَاهُمْ وَجَعَلْنَاهُمْ لِلنَّاسِ آيَةً وَأَعْتَدْنَا
لِلظَّالِمِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ﴿٣٧﴾ وَعَادًا وَثَمُودَ وَأَصْحَابَ الرَّسِّ وَقُرُونًا بَيْنَ ذَٰلِكَ كَثِيرًا ﴿٣٨﴾ وَكُلًّا
ضَرَبْنَا لَهُ الْأَمْثَالَ وَكُلًّا تَبَّرْنَا تَتْبِيرًا ﴿٣٩﴾﴾

او خامخا په تحقیق ورکړی وو مونږ موسی ته کتاب (تورات) او ګرځولی وو مونږ له دغه (موسی) سره ورور د ده هارون وزیر (مددګار). پس وویل مونږ (دوی ته چې) لاړ شئ دواړه هغه قوم ته چې دروغجن یې شمیرلي دي آیتونه ځمونږ (نو دوی ورغلل، او ابلاغ یې وکړ، او فرعونیانو دوی دروغجنان وشمېرل)؛ پس هلاک کړل مونږ فرعونیان په هلاکولو سره. او (هلاک کړي وو مونږ) قوم د نوح، کله چې دروغ وشمېرل دوی رسولان خپل؛ غرق کړل مونږ دوی، او وګرځول مونږ دوی لپاره د خلقو دلیل (نښه د عبرت)، او تیار کړی دی مونږ لپاره د ظالمانو عذاب ډېر دردناک. او (هلاک کړل مونږ) عادیان او ثمودیان، او صاحبان د کوهي، او نور اهل د زمانو په منځ د دوی کې ډېر. او هر یو له دې نه بیان کړي وو مونږ ده ته مثالونه (د عبرت په اقامت د حجّت په دوی باندې)، او ټول مو هلاک کړل په هلاکولو سره.

تفسیر: یعنې هغو تکوینیه وو آیتونو ته چې د الله تعالی پر توحید او نورو باندې یې دلالت کوه، او د پخوانیو انبیاوو هغو متفقو بیاناتو ته چې د هغو لرې او ډېرې مذاکرې او خبرې له پخوا راهیسې دوام لري؛ دوی د دروغو نسبت وکړ، او د الوهیت په دعوی پسې یې خوله وپرانیستله.

﴿وَقَوْمَ نُوحٍ لَّمَّا كَذَّبُوا الرُّسُلَ﴾: «او هلاک کړی وو مونږ قوم د نوح کله چې دروغجن وشمېرل دوی رسولان خپل»، د یوه نبي دروغجن ګڼل د ګردو انبیاوو د دروغجن شمېرلو په منزله دی، ځکه چې د دین په اصولو کې ګرد انبیاء سره متحد او متفق دي.

﴿أَصْحَابَ الرَّسِّ﴾ (کوهي والا) څوک دي؟ په دغه کې ډېر اختلاف شته، په «روح المعاني» کې یې ډېر اقوال نقل کړي دي، په پای (آخر) کې لیکي: «خلاصه یې داده چې: دوی دغسې یو قوم وو چې د خپل نبی د تکذیب په سبب هلاک شوي دي»، والله أعلم.

﴿وَلَقَدْ أَتَوْا عَلَى الْقَرْيَةِ الَّتِي أُمْطِرَتْ مَطَرَ السَّوْءِ أَفَلَمْ يَكُونُوا يَرَوْنَهَا بَلْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ نُشُورًا ﴿٤٠﴾﴾

او خامخا په تحقیق تېر شوي دي (تیریږي ډېر ځلې کفّار) پر قریو کلیو ښارونو هغو چې ورولی

شوي وو پرې باران د بدی (د عذاب)، آیا پس نه وو دغه (کفّار) چې لیدلي یې وی هغه (قریه چې عبرت به یې اخیستی وی)، بلکه وو دوی چې نه به یې درلود (لرلو) امید د بیا ژوندي پورته کېدلو.

تفسیر: یعنې د لوط علیه السلام د قوم د کلیو پر هغو کنډوالو او مخروبه ځایونو مکي والا د شام د سفر په وخت کې تیریږي؛ نو آیا دغو منکرینو هغه کنډوالې او خرابې مېنې د عبرت په سترګو نه دي کتلې؟ بلکه کتلې یې دي، او په دې ښه پوهیږي او خبردار دي چې د پخوانیو مکذبینو پای او انجام ډېر خراب وو، خو ترې نه متنبه کیږي، ځکه چې په دوی کې عبرت له کومه کیږي، کله چې د دوی په نزد له سره دغه احتمال هم نشته، چې وروسته له مرګه بیا ژوندي راپاڅېدل او د الله تعالی په مخ کې حاضرېدل شته؛ عبرت خو هم هغه حاصلوي چې د هغه په زړه کې لږ څه وېره وي، او د خاتمې او انجام څخه بیخي بې فکره نه وي.

وَإِذَا رَأَوْكَ إِن يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَٰذَا الَّذِي بَعَثَ اللَّهُ رَسُولًا ﴿٤١﴾ إِن كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ آلِهَتِنَا لَوْلَا أَن صَبَرْنَا عَلَيْهَا ۚ وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ حِينَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿٤٢﴾

او کله چې ووینې دوی تا؛ نو نه نیسي دوی تا مګر ځای د مسخرې (او تمسخرًا سره وایې): آیا دغه هغه (سړی) دی چې رالیږلی دی الله رسول (مونږ ته؟، بلکه دی خو له رسالت څخه ډېر لرې دی). بېشکه چې دی نژدې وو چې خامخا ګمراه کړي او ګرځولي یې وی مونږ له معبودانو ځمونږ که صبر نه وی کړی مونږ په (عبادت) د دوی، (نو فرمایي الله): او ژر به پوه شي دوی کله چې ووینې دوی عذاب (د قیامت ښکاره) چې څوک دی ډېر ګمراه له جهته د لارې.

تفسیر: یعنې د عبرت حاصلولو په ځای د دوی مشغله همدا ده، چې پر نبي مسخره وکړي، لکه چې ستاسې د لیدلو په وخت کې استهزاء وایې چې: آیا دی هم هغه سړی دی چې د الله تعالی له طرفه رسول رالیږلی شوی دی؟ آیا په دغه حیثیت او وضعیت سره د رسالت منصب د چا په برخه کېدی شي؟ آیا د الله تعالی په ګردو مخلوقاتو کې همدغه یو سړی پاتې وو، چې د رسالت قابل شو؟.

نو الله تعالی جلّ وعلا شأنُه و عظُم برهانُه د دوی د دغه تمسخُر او استهزاء او ملنډو په مقابله کې داسې فرمایي: ﴿وَسَوْفَ يَعْلَمُونَ حِينَ يَرَوْنَ الْعَذَابَ مَنْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾ یعنې کله چې دوی د الله تعالی عذاب په خپلو سترګو سره وګوري؛ نو هلته به ورته معلوم شي چې په واقع سره کوم یو ګمراه وو؟.

أَرَأَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُ هَوَاهُ أَفَأَنتَ تَكُونُ عَلَيْهِ وَكِيلًا ﴿٤٣﴾

آیا وینې، خبر یې ته (بلکه خبر یې) په هغه چا چې نیولی یې دی دغه معبود خپل خواهش (د نفس خپل)؟ آیا پس ته به یې په ده باندې وکیل (ساتونکی چې منع یې کړې له خواهش خپل، بلکه نه یې).

تفسیر: یعنې آیا تاسې د داسې خواهش پرستانو د هدایت پر لارې د راوستلو ذمه واري کولی شئ، چې د دوی معبودان هم د دوی په خوښه او انتخاب وي، هر چېرې چې د دوی غوښتنه او خواهش دوی بوځي؛ په هم هغه طرف دوی متمائل کیږي، هره هغه خبره چې د دوی د خواهش سره موافقه وي؛ هغه مني، او هر څیز چې د دوی د طبعي څخه مخالف وي، هغه پرېږدي، نن چې یوه تیږه (ګټه) د دوی په نظر کې ښه ښکاره شوه، د هغې په عبادت کې مشغولیږي، سبا چې بله کومه تیږه د دوی په سترګو ښه وبرېښېده؛ نو هغه پرېږدي او دې ته سجدې ږدي.

أَمْ تَحْسَبُ أَنَّ أَكْثَرَهُمْ يَسْمَعُونَ أَوْ يَعْقِلُونَ إِنْ هُمْ إِلَّا كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا ﴿۴۴﴾

آیا گمان کوې ته چې په تحقیق اکثر د دوی اوري یا عقل چلوي (پوهیږي)؟ نه دي دوی مګر په شان د چارپایانو دي (په پند نه اوریدلو کې)، بلکه لا دوی ډېر لرې دي له لارې (د صواب نه).

تفسیر: یعنې په هر ډول سره چې دوی ته پندونه او نصائح واوروئ؛ دوی خو څلوربولي حیوانات دي، بلکه له هغوی څخه هم بدتر او خراب دي، دوی له پوهېدلو او اورېدلو سره هیڅ علاقه او ارتباط نه لري، څاروی او حیوان هم په هر حال د خپل پالونکي او بادار په مقابل کې خپله غاړه ښکته کوي، او خپل محسن پېژني، او في الجمله نافع له مضر څخه بېلوي، که یې سر خوشی پرېږدې؛ د څرځاي (چراه ګاه) او د اوبو څښلو ګودر ته پخپله ځي، لیکن د دغو بدبختانو حال داسې دی چې نه د خپل خالق او رازق حق پېژني، او نه د ده پر ښېګڼو (فائدو) او احساناتو پوهیږي، او نه یې قدر او عزت کوي، د ښو او بدو په منځ کې د فرق او تمیز کولو څخه عاجز دي، د دوست او د ښمن په منځ کې امتیاز نشي کولی، نه په روحاني غذاء پسې او نه د هدایت د چینې په لوري یو قدم وړاندې تلی شي.

أَلَمْ تَرَ إِلَىٰ رَبِّكَ كَيْفَ مَدَّ الظِّلَّ وَلَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ سَاكِنًا ثُمَّ جَعَلْنَا الشَّمْسَ عَلَيْهِ دَلِيلًا ﴿۴۵﴾ ثُمَّ قَبَضْنَاهُ إِلَيْنَا قَبْضًا يَسِيرًا ﴿۴۶﴾

آیا نه دي کتلي تا (قدرت د) رب خپل ته چې څرنګه یې غځولی دی سیوری، او که یې اراده یې فرمایلې وی؛ نو خامخا ګرځولی به یې وو هغه (سیوری) ولاړ، بیا وګرځاوه مونږ لمر په دې (سیوري) دلیل (چې سیوری پرې معلومیږي). بیا راټول کړو مونږ هغه ځان خپل ته په راټولولو آسانو سره (ورو ورو لږ لږ).

تفسیر: له سپېده داغه (صبح کاذبه) تر لمر څرېکې پورې هر چېرې سیوری وي، که الله تعالی داسې اراده فرمایلې وی؛ چې لمر ونه خیژي؛ نو همدغه سیوری به قائم پاتې کېده، مګر الله تعالی پخپل کامل قدرت سره لمر طالع کړ، چې د هغه لامله د لمر د رڼا خوره کېدل شروع شو، او سیوري متدرّجًا یوه طرف ته په ځان ټولېدلو او غونډېدلو پیل (شروع) وکړ، که لمر نه وی راغلی؛ نو مونږ به د سیوري په مفهوم څرنګه پوهېدی شوی؟ ځکه چې د یوه ضد له راتګه بل ضد پېژندل کیږي: ﴿قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ جَعَلَ اللَّهُ عَلَيْكُمُ اللَّيْلَ سَرْمَدًا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَنْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ يَأْتِيكُمْ بِضِيَاءٍ﴾ الآیة ـ (د القصص سورت (۷۱) آیت، (۷) رکوع، (۲۰) جزء).

وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِبَاسًا وَالنَّوْمَ سُبَاتًا وَجَعَلَ النَّهَارَ نُشُورًا ﴿۴۷﴾

او همدغه (الله) هغه (ذات) دی چې ګرځولې یې ده تاسې ته (په کامل قدرت خپل سره) شپه لباس (پوښاک)، او (ګرځولی یې دی تاسې ته) خوب آرامي، او ګرځولې یې ده ورځ وخت د ښورېدو او ګرځېدلو (لپاره د طلب د معاش).

تفسیر: یعنې د شپې تکه توره تیاره د څادر په شان پر ګردو محیط کیږي، چې د هغه لامله ټول خلق کاروبار پرېږدي او آرام کوي، بیا د ورځې رڼا خپرېږي (خوریږي)، او خلق له خوبه پاڅیږي، او دغه لوري او هغه لوري ته تګ او راتګ کوي، او همداسې د مرګې د خوب څخه وروسته د قیامت سبا راځي، چې په هغه کې به ټول جهان بیا ژوندی راپاڅیږي، او همدغه حالت په هغه وخت کې وړاندې شوی وو، کله چې انبیاء علیهم السلام د وحي او الهام په رڼا سره دنیا رڼا کړه؛ نو د جهل او غفلت په خوبونو کې د ویده وو مخلوقو سترګې هم یو ځلې وپرانستلې شوې، او ټول سره پاڅېدل.

وَهُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ الرِّيٰحَ بُشْرًۢا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ ۚ وَاَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً طَهُوْرًا ﴿۴۸﴾ لِّنُحْیِۦَ بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا وَّنُسْقِيَهٗ مِمَّا خَلَقْنَآ اَنْعَامًا وَّاَنَاسِيَّ كَثِيْرًا ﴿۴۹﴾

او همدغه (الله) هغه (ذات) دی چې رالیږلي یې دي بادونه زیري کوونکي د وړاندې د رحمت د دغه (الله چې باران دی)، او نازلې کړې دي مونږ له (طرفه) د آسمانه اوبه پاکې پاکوونکې. لپاره د دې چې ژوندي کړو مونږ په دې (اوبو) ځمکه مړه وچه بې زرغونوالي وچه، او ور وڅښوو دغه (اوبه) له جملې د هغو شیانو ځنې چې پیدا کړي دي مونږ له چارپایانو او انسانو ډېرو ته.

**تفسیر:** یعني ړومبی بارانی هواوې د باران زیری ورکوي، بیا د اسمان له طرفهووري، چې هغه هم پخپله پاک دی، او نور شیان هم پاکوي، د اوبو د وریدلو څخه وروسته په مړې تکې تورې وبجاړې ځمکې کې یو نوی روح پیدا کیږي، شینکي او نباتات یې زرغونیږي، او یوه عجیبه او غریبه ننداره په کې ښکاري، له کوم ځای څخه چې پخوا له وریا (باران) دوړې پورته کېدې، اوس هلته تکه شنه مرغجنه (کبل زاره) ولاړه ده، او څومره زیات حیوانات او انسانان د باران له اوبو ځنې څښي، او ترې خړوبیږي، همداسې د قیامت په ورځ کې هم د یوه غیبي باران په ذریعه هغه مړي هم بیا ژوندي راپاڅولی کیږي، چې له خاورو سره ګډوډ شوي وي، او په دنیا کې هم هغه زړونه چې همداسې د جهل او عصیان په مرګ سره مړه شوي وو؛ د الله تعالی د وحي په اسماني وریا (باران) سره بیا راژوندي کړی شوي دي، هغه ارواح چې په نجاست او پلیتۍ کې نښتي وي؛ هغه د روحاني باران په اوبو سره وینځلي شوي دي، او ټول سره پاک او صاف شوي دي، او هغه کسان چې د معرفت او د وصول الی الله په اوبو پسې تږي دي، د هغه روحاني باران د اوبو په څښلو سره سېراب او خړوب شوي دي.

وَلَقَدْ صَرَّفْنٰهُ بَيْنَهُمْ لِيَذَّكَّرُوْا ۖ فَاَبٰٓى اَكْثَرُ النَّاسِ اِلَّا كُفُوْرًا ﴿۵۰﴾

او خامخا په تحقیق راز راز ډولونو تقسیم کړي دي مونږ دغه (اوبه د باران منشأ) په منځ د دوی کې لپاره د دې چې فکر وچلوي دوی (په کمال د قدرت ځمونږ کې)، پس منع راوړه زیاترو خلقو (د شکر ګزارۍ نه) لیکن (د نعمت له) کفران (څخه یې منع رانه وړه).

**تفسیر:** یعني د باران اوبه ټولو ځمکو او انسانانو ته یو برابر نه وررسیږي، بلکه چېرې ډېرې او چېرې لږې، چېرې ژر او چېرې په ځنډ (ایسارتیا)، څرنګه چې د الله تعالی د حکمت اقتضا وي؛ هم هغسې ور رسیږي، څو خلق وپوهیږي چې د هغه درول او ویشل د قادر مختار او د حکیم الله تعالی په قدرت دي، لیکن زیات خلق بیا هم نه پوهیږي، او د الله تعالی د نعمت شکر نه اداء کوي، بلکه بالعکس مخ په شرک، کفر او ناشکرۍ منډې وهي، هم دغسې د روحاني باران حال هم قیاس کړئ، هر چاته سم د هغه د استعداده او ظرفه سره هومره برخه چې په کار ده؛ وررسېدلې ده، او ډېر کسان د دغه عظمی نعمت په مقابل کې کُفران او ناشکري هم کوي.

وَلَوْ شِئْنَا لَبَعَثْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ نَّذِيْرًا ﴿۵۱﴾ فَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَجَاهِدْهُمْ بِهٖ جِهَادًا كَبِيْرًا ﴿۵۲﴾

او که اراده مو فرمایلې وی؛ نو خامخا راپورته کړی به مو وی په هره قریه ښار کې (بېل بېل) ویرَوونکي (په دغه زمانه کې هم). نو مه کوه اطاعت (د غوښتنو) د کافرانو، او مجاهده مقابله کوه له دوی سره په دغه (قرآن او توفیق د رحمان) په جهاد لوی.

**تفسیر:** یعني د انبیاوو راتلل کومه عجیبه خبره نه ده، که الله تعالی اراده وفرمایي؛ نو اوس هم ډېر انبیاء مبعوثوي، چې په هر کلي کې بېل بېل نبي وي، مګر الله ته همدغه خبره منظوره شوه؛ چې اوس دې په آخره کې د ټول جهان

لپاره يواځې همدغه محمد صلی الله علیه وسلم د سید الانس والجان او نبي آخر الزمان په عنوان مبعوث او مرسل شي، نو تاسې د کفارو حماقت او طعنې او تشنیع او سفاهت او تنقید او تردید ته هیڅ توجه او التفات مه کوئ !، او د خپل دغه دعوت او تبلیغ کار ته په پوره قوّت او جوش او خروش سره ادامه ورکړئ ! (جاري وساتئ)، او دغه عظیم الشأن قرآن پخپل لاس کې واخلئ !، او د دغو منکرانو مقابله په ډېر زور او مېړانه (بهادرۍ) سره وکړئ !، الله تعالی هرومرو برى او کامیابي ستا په برخه کوي، مونږ د «به» مرجع قرآن او توفیق «رحمان» لیکلې ده، خو نورو مفسرینو د هغه مرجع د کفّارو د اطاعت ترک یا د اسلام په مداومت یا توره سیف یا حکمت او موعظت هم اخیستې ده.

وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا مَّحْجُورًا ﴿٥٣﴾

او همدغه (الله) هغه ذات دی (چې په کامل قدرت خپل سره) خوشې کړي يې دي دوه بحرونه، سيندونه؛ چې دغه خوږ دی ډېر خوږ تنده ماتوونکی، او هغه بل تریو دی ښه تریو، او ګرځولې ده (الله) په منځ د دغو دواړو کې پرده او بند چې منع کړی شوی دی (په هغه سره اختلاط د دغو دواړو).

تفسیر: په بیان القرآن کې د دوو معتبرو بنګالیو عالمانو شهادت نقل شوی دی، چې له (ارکان) څخه تر (چاټګام) پورې د سیند وضعیت داسې دی چې د دغه سیند په دواړو جانبو کې د نوعیت او کیفیت له طرفه دوه مختلف بېل بېل سیندونه په نظر راځي، د یوه اوبه سپینې او د بل اوبه تورې دي، په تورو کې د سمندر په شان طوفاني تلاطم او تموّج واقع کیږي، او سپینې یې بیخي آرامې او ساکنې وي، بېړۍ په همدغو سپینو کې چلیږي، او د دواړو په منځ کې د یوه پټې او نوار په شان یوه ډېره اوږده لیکه غځېدلې ده، چې د دغو دواړو اوبو متلقی ګڼله کیږي، خلق وایي چې: سپینې اوبه خوږې او تورې اوبه ترخې دي.

یعنې د الله تعالی قدرت ته وګورئ ! چې د خوږو او ترخو اوبو د یو ځای کېدلو په سبب چې هرومرو یو ځای نه په یو ځای کې سره ګډیږي، خو بیا هم دوی سره بېلې جدا او ممتازې دي، او د دواړو په منځ کې په ډېرو ځایونو کې یې ځمکه حائله او پرده ګرځولې ده، او همداسې یې سرخوشې (آزادې) نه دي پرېښې، چې د دواړو په زور او قوت سره ځمکه له منځه لرې کړه شي، او جبري ډول سره یو ځای شي، او د ځمکې وجود له منځه ورک کړي، بیا په دغو دواړو د هر یوه خوند او مزه چې له هغو سره لازمه ده؛ هم هغه سره پاتې ده، او ترې بل ته نه ده منتقله شوې، او داسې نه دي واقع شوي چې خوږې اوبه تروې یا تروې اوبه خوږې شي، ګواکې د اوصافو په اعتبار هره یوه له بلې بیخي بېله او جدا ده.

وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا ۗ وَكَانَ رَبُّكَ قَدِيرًا ﴿٥٤﴾ وَيَعْبُدُونَ مِن
دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَنفَعُهُمْ وَلَا يَضُرُّهُمْ ۗ وَكَانَ الْكَافِرُ عَلَىٰ رَبِّهِ ظَهِيرًا ﴿٥٥﴾

او همدغه (الله) هغه (ذات) دی چې پیدا کړی یې دی له اوبو نه بشر انسان، پس ګرځولی یې دی (خاوند د) نسب او سخرګنی، او دی رب ستا ښه قادر. او عبادت کوي (دا مشرکان) بې له الله د هغه شي چې نشي رسولی هیڅ قدر نفع دوی ته (که یې عبادت وکړي)، او نه هیڅ ضرر رسولی شي دوی ته (که یې عبادت ونه کړي)، او دی (جنس د) کافر په (نافرمانۍ) د رب خپل مددګار (د شیطان، شا اړوونکی الله ته).

تفسیر: یعني وګورئ ! چې الله بر حق مطلق جل وعلا شأنُه وعظم برهانُه په څه شان پخپل کامل قدرت سره یې له یوه څاڅکي اوبو څخه عاقل کامل بني آدم جوړ کړی دی، بیا وروسته له دې نه نور نسلونه یې ترې ایستلي دي، د څومانو او سخرانو تعلّقات یې ترې جوړ کړي دي، او له یوه ناڅیزه څاڅکي څخه یې څه څه شیان پیدا کړي دي، او له کومه ځایه یې ترې کوم ځایه پورې رسولي دي؟ لیکن دغه انسان په لږ مدّت کې خپل اصل هېروي، او خپل هغه قدیر رب او خالق یې پرېښی دی، او عاجز مخلوق ته خپل خالق وایي، نه یواځې د خپل پروردګار حق نه پېژني، بلکه له هغه څخه مخ ګرځوي، او په شیطاني فوځ کې خپل ځان داخلوي، څو د اغوا کولو او اضلالولو په مقاصدو کې له هغوی سره کومك او مدد وکړي، «نعوذ بالله من شُرور أنفسنا، ومن سيئات أعمالنا».

وَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ اِلَّا مُبَشِّرًا وَّنَذِيۡرًا ۝ قُلۡ مَآ اَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ اَجۡرٍ اِلَّا مَنۡ شَآءَ اَنۡ يَّتَّخِذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيۡلًا ۝

او نه یې لېږلی مونږ ته مګر زېری ورکوونکی (مؤمنانو ته په نعیم سره) او ویروونکی (کافرانو ته په جحیم سره). ووایه (ای محمده ! دوی ته) نه غواړم زه له تاسې په (پیغام رسونه) هیڅ قدر اجر مزدوري مګر (غواړم ایمان راوړل د) هغه چا چې خوښه یې شي دا چې ونیسي طرف د رب خپل ته لاره (د رضاء او قرب)، یا لیکن هغه څوك چې غواړي چې ونیسي خپل رب ته لاره (په انفاق د مال سره، لاره د رضا د ده؛ نو ودې نیسي رب خپل ته هم هغه لار د قرب او رضاء).

تفسیر: یعني ستاسې کار د الله تعالی پر وفادارۍ او اطاعت د بشاراتو اورول دي، او غدارانو ته مجرمانو ته د دوی د خرابو نتائجو او عواقبو خبرول دي، که سره له هغه یې ونه مني یا یې ومني؛ تاسې ته له هغه څخه هیڅ نقصان نه دی عائد، تاسې له دوی نه څه اجرت او حق الزحمه خو نه غواړئ چې د هغو د نه منلو په اثر به هغه فوت شي، تاسې خو له دوی نه یواځې هم دغومره شی غواړئ: هر څوك چې غواړي د پاك الله په توفیق د خپل رب لاره ونیسي؛ نو ودې نیسي رب خپل ته هم هغه لار، زړه مو چې همدغه ته مزدوري وایئ که حق الزحمه او فیس.

وَتَوَكَّلۡ عَلَى الۡحَىِّ الَّذِىۡ لَا يَمُوۡتُ وَسَبِّحۡ بِحَمۡدِهٖ‌ ؕ وَكَفٰى بِهٖ بِذُنُوۡبِ عِبَادِهٖ خَبِيۡرَا ۝

او توکّل وکړه په تل ژوندي ذات قائم په تدبیر هغه (الله) چې (له سره) نه مري، او تسبیح ووایه سره له ثناء د ده، او بس کافي دی هغه په ګناهونو د بندګانو خپلو ښه خبردار.

تفسیر: یعني تاسې یواځې پر الله تعالی اعتماد او توکل وکړئ، او خپله فریضه چې دعوت او تبلیغ او نور دي؛ په ښه شان سره اداء کړئ !، د هیچا د مخالفت او موافقت پروا ونه کړئ !، پر فاني اشیاوو به څه اعتماد او اعتبار وشي؟ اعتماد او توکّل ښایي پر هغه ذات وکړ شي چې تل ژوندی قائم په تدبیر دی، او له سره نه مري، نو پر هم هغه توکل او اعتماد وکړئ !، او تل د هم هغه په حمد او ثناء مشغول او لګیا اوسئ !، دغو مجرمینو ته به پخپله الله تعالی سزا ورکړي.

الَّذِىۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا فِىۡ سِتَّةِ اَيَّامٍ ثُمَّ اسۡتَوٰى عَلَى الۡعَرۡشِ‌ ‌ۛۚ اَلرَّحۡمٰنُ فَسۡـَٔلۡ بِهٖ خَبِيۡرًا ۝

هغه (الله) چې پیدا کړي یې دي اسمانونه او ځمکه او هغه چې په منځ د دغو دواړو کې دي په (مقدار) د شپږو ورځو، بیا پورته او اوچت شو پر عرش باندې، (الله چې دی) ډېر مهربان دی؛ پس وپوښته (د دغه خلق او استواء یا د رحمان) له کوم ښه خبردار عالم نه.

تفسير: د «استواء على العرش» بيان د «الأعراف» په سورت كې تېر شو، هلته دې ولوستلى شي.

يعنې له هغو كسانو څخه پوښتنه وكړئ چې د الله تعالى له شان او رحمت او له ذات او صفات څخه پوره خبردار دي، دغه جاهلان مشركان په هغه باندې څه پوهيږي ﴿وَمَا قَدَرُوا اللَّهَ حَقَّ قَدْرِهِ﴾، پخپلو صفاتو او كمالاتو باندې خو پوره عالم يوائې هم هغه الله تعالى دى: «أنت كما أثنيت على نفسك»، ليكن په مخلوقاتو كې له ټولو څخه ډېر پوه محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم دى، نو ښايي چې د الله تعالى د صفتونو پوښتنه له دوى نه وشي !.

﴿وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ۩﴾ ۶۰

او كله چې وويلى شي دوى ته چې سجده (د عبادت) كوئ «رحمان» ته؛ نو وايي: څه شيز دى «رحمان»؟ آيا سجده به كوو مونږ هر هغه شيز ته چې امر كوې ته مونږ ته، او زياتوي (دغه يادول د «رحمان») دوى ته نفرت (له ايمان نه).

تفسير: يعنې دغه جاهلان مشركان د «رحمان» د شان له عظمته څه خبر دي؟ او څه پرې پوهيږي؟ دوى خو له دغه نوم سره دومره ښه هم نه دي، او هر كله چې دغه نوم اوري؛ نو د انتهايي جهل او بې حيايي او تعنّت له مخې ځانونه ناجاړه او ناواقفه غورځوي، او داسې پوښتنې كوي چې «رحمان» څه شى دى؟ چې پر مونږ باندې د هغه سجده كوې؟ آيا محض ستا په وينا سره مونږ دغه خبره ومنو؟ او همدا چې ته كوم نوم ياد كړې؛ نو مونږ خامخا ورته سر په سجده ولويږو؟، الغرض هومره چې دوى ته د «رحمان» د اطاعت انقياد په لوري توجه وركړه شي؛ هغومره دوى بد وړي، او تور ورڅخه خوري.

﴿تَبَارَكَ الَّذِي جَعَلَ فِي السَّمَاءِ بُرُوجًا وَجَعَلَ فِيهَا سِرَاجًا وَقَمَرًا مُّنِيرًا ۝ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ خِلْفَةً لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا﴾ ۶۱ ۶۲

لوى بركتناك دى هغه ذات چې پيدا كړي يې دي په اسمان كې برجونه او پيدا كړې يې ده په كې ډيوه (لمر)، او سپوږمى روښانه. او همدا (الله) هغه (ذات) دى چې ګرځولې يې ده شپه او ورځ (سره مخالف يا خليفه يو د بل) پرله پسې، لپاره د هغه چا چې اراده لري د دې چې ياد كړي (نعمتونه د رب ستا، او فكر وكړي په مصنوعاتو د الله كې) يا اراده لري د شكر ايستلو.

تفسير: يعنې لوى لوى ستوري يا آسماني قلعې چې پرښتې په كې پيرې كوي، يا امكان لري چې د لمر دولس منازل ترې مراد وي، چې اهل هيئت يې بيانوي.

﴿سِرَاجًا﴾ يعنې لمر، ښايي د نور او حرارت د جمع كېدو يا د احراق د صفت لرلو له سببه يې هغه ته (ډيوه) ويلې وي: ﴿وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا﴾ (د نوح سورت (۱) ركوع (۱۶) آيت (۲۹) جزء).

اوږدېدلو او لنډېدلو ته يا تلو او راتلو ته يې بدلېدل، پرله پسې راتلل وفرمايل، يا يې دا مطلب دى چې يو يې د بل بدل ګرځولى دى، مثلاً كه د ورځې كار پاتې شي؛ د شپې يې پوره كوي، او كه د شپې كار پاتې شي؛ د ورځې يې په سر رسوي، كما ورد في الحديث، ﴿لِّمَنْ أَرَادَ أَن يَذَّكَّرَ أَوْ أَرَادَ شُكُورًا﴾، يعنې د لمر او سپوږمى او د نورو وړاندې وروسته ختل او د شپې او د ورځې بدلېدل، زياتېدل، او كمېدل ددې له امله واقع كيږي؛ څو د عقل او فكر خاوندان پكې غور او دقت وكړي، او ښه وپوهيږي چې دغه ټول لوى تصرفات او عظيم تقلبات دده د قدرت كارونه دي او دشپې او د ورځې دفوائدو او انعاماتو له ليدلو څخه دده عبادت او شكر ايستلو ته متوجه شي.

وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِيْنَ يَمْشُوْنَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَّإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجٰهِلُوْنَ قَالُوْا سَلٰمًا ﴿۶۳﴾

او بندګان د «رحمان» هغه کسان دي چې ګرځي دوی په ځمکه باندې په ورو (په تواضع)، او کله چې خطاب کوي له دوی سره جاهلان ناپوهان؛ نو وايي (ورته په ځواب کې سلام، خبره) سالمه (له ګناه او ضرره).

تفسیر: يعنې د کم عقلو او ناپوه خلقو ځواب په عفوه او صفح سره ورکوي، کله چې څوك د جهالت خبرې او اترې وکړي؛ نو ملائمې مذاکرې او پستې خبرې ورسره کوي، او په «السلام» سره ترې ځان بېلوي، او د داسې خلقو سره حتی الامکان نه مخامخ کيږي، او نه له هغوی سره په کومه مرکه کې شامليږي، او نه له دوی سره جنګ او جګړې کوي.

وَالَّذِيْنَ يَبِيْتُوْنَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَّقِيَامًا ﴿۶۴﴾

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي چې شپه تېروي رب خپل ته سجده کوونکي او دريدونکي.

تفسیر: يعنې د شپې له مخې چې غافل بندګان خوبونه کوي، دوی د الله جل جلاله په حضور کې ولاړ وي، او ورته سجده بردي، او په عبادت کې يې لګيا وي، کله چې رکوع د قيام او سجدې په منځ کې واقعه ده؛ ښايي د همدې لامله د هغې ذکر يې بېل ونه فرمايه، ګواکې رکوع د دغو دواړو په منځ کې بالطبع راغله.

وَالَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ ۖ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ﴿۶۵﴾ إِنَّهَا سَآءَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا ﴿۶۶﴾

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي (چې سره له طاعته خضوعًا) وايي: ای ربه ځمونږ! وګرځوه له مونږ څخه عذاب د دوزخ. بېشکه عذاب د دغه (دوزخ) دی (عذاب) لازم همېشه. بېشکه چې دا (دوزخ) بد دی له جهته د ځای د قرار، او له جهته د ځای د هستوګنې.

تفسیر: يعنې سره له دومره عبادته ډېر ويريږي، داسې نه دي چې مثلاً د تهجّد لپاره چې پاڅېد، او اته رکعته لمونځ يې وکړ؛ نو د الله تعالی له عذابه او قهره بيخي بې فکره شو.

وَالَّذِيْنَ إِذَآ أَنْفَقُوْا لَمْ يُسْرِفُوْا وَلَمْ يَقْتُرُوْا وَكَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ﴿۶۷﴾

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي کله چې نفقه ورکوي مال لګوي؛ نو نه اسراف کوي، او نه تنګي (او بخل) کوي، او وي (دغه ورکړه د دوی) په منځ د دغه (اسراف او تقتير) کې ميانه حاله.

تفسیر: يعنې زمان او مکان او موقع ته ګوري، او په معتدل او متوسط صورت سره خپل مال لګوي، نه د مال په محبت کې له حده تيريږي، او نه يې ضايع کوي، کما قال الله تعالی: ﴿وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً إِلٰى عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ﴾ الآية ـ (۱۵ جزء، د بني اسرائيل سورت (۳) رکوع، (۲۹) آيت).

وَالَّذِيْنَ لَا يَدْعُوْنَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا اٰخَرَ وَلَا يَقْتُلُوْنَ النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُوْنَ ۚ

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي چې نه بولي سره له الله معبود بل، او نه وژني دوی نفس هغه چې حرام کړي دي الله (وژل د هغه) مګر په حق سره، او نه کوي دوی زنا.

**تفسير:** مثلاً د عمد قتل په بدل کې وژل، یا د زنا په سزا کې د محصن زاني په ګټو سره ویشتل، یا د هغه مرتدّ وژل چې خپل اسلامي دین او ملّت پرېږدي، دغه ټول صورتونه په ﴿إِلَّا بِالْحَقِّ﴾ کې شامل دي، كما ورد في الحديث.

وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ﴿٦٨﴾

او هر څوک چې وکړه (یو له دغو دریو امهات الذنوب نه)؛ نو ملاقات به وکړي وبهویني جزاء د ګناه خپلې.

**تفسیر:** یعنې ډېره سخته ګناه یې کړې ده، چې د هغه سزا به هرومرو وررسیږي، په ځینو روایاتو کې راغلي دي چې: «أثام» د جهنّم د یوې کندې نوم دی، چې د هغه عذا ب ډېر سخت ویروونکی بیان شوی دی، أعاذنا الله منها.

يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا ﴿٦٩﴾

چې دوچند به کړی شي ده ته عذاب (د دوزخ) په ورځ د قیامت کې، او تل به پاتې وي په دغه (عذاب) کې په دې حال چې خوار ذلیل بې اعتبار به وي.

**تفسیر:** یعنې له نورو ګناهونو څنې دغه ګناه لویه ده، نو د دغې عذاب به هم سخت او لوی وي، او شېبه په شېبه (ساعت په ساعت) لا پسې زیاتیږي.

إِلَّا مَن تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولَٰئِكَ يُبَدِّلُ اللَّهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٧٠﴾

مګر هغه چې توبه یې وویسته، او ایمان یې راوړ، او عمل یې وکړ عمل نېک؛ پس دغه (تائبان د دغو دریو ګناهونو چې دي) بدل به کړي الله ګناهونه د دوی په نېکیو سره (په محو د سیئاتو او ثبت د حسناتو)، او دی الله ښه مغفرت کوونکی، ډېر رحم کوونکی.

**تفسیر:** یعنې د ګناهونو په ځای به د نېکیو توفیق ور په برخه کیږي، او د کفر ګناه به ورمعافیږي، یا دا چې د ده بدي محو او لرې کیږي، او د صالح عمل په برکت به د هغه په شمېر مناسب محاسن ورثبت فرمایي، كما يظهر من بعض الأحاديث.

وَمَن تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللَّهِ مَتَابًا ﴿٧١﴾

او هر څوک چې توبه وباسي (له ګناهونو نه) او عمل وکړي نېک؛ پس بېشکه چې دی رجوع کوي په طرف د الله په ښه رجوع کولو سره.

**تفسیر:** پخوا د هغو کفّارو د ګناهونو ذکر وو، چې ورروسته ایمان راوړي، دغه د هغو ګناهونو ذکر دی چې سره له اسلامه یې کوي، دغه هم کله چې توبه وکړي؛ یعنې په پوره اخلاص او صمیمیت سره توبه وباسي، او بیا له سره د هغه شاوخوا ته ونه ګرځي؛ نو د الله تعالی په حضور کې ځای مومي، د النساء د سورت په (١٣) رکوع کې (٩٣) آیت، دغه آیت د هغو قاتلینو په حق کې دی چې دغسې توبه یې نه وه ایستلې: ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾ والله أعلم.

وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا ﴿٧٢﴾

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي چې نه حاضریږي نه شاملیږي په باطلو کې (یا نه وایي

شاهدي په دروغو)، او کله چې تېرېږي پر چټي (بېکاره) کار؛ نو تيرېږي ځان ساتونکي (مخ ګرځوونکي له لغوې نه).

تفسير: يعنې نه دروغ وايي، او نه د دروغو شهادت ورکوي، او نه د باطلو چارو او د ګناهونو په مجلسونو کې حاضرېږي.

وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ﴿٧٣﴾

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي کله چې پند ورکړی شي دوی ته په آيتونو د رب د دوی؛ نو نه نسکورېږي پرې (لکه) کاڼه او ړانده (بلکه سر په سجده ږدي اوري يې، او پرې عمل کوي).

تفسير: او په نهايت فکر، تدبّر او غوره سره يې اوري او ترې متأثر کيږي، او د مشرکانو په شان دوی د تيږي (ګټې) بُتان له خپلو ځانونو څخه نه جوړوي.

وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ

او (بندګان د رحمان) هغه کسان دي چې وايي: ای ربه ځمونږ! وبښه مونږ ته (په فضل خپل سره) له ښځو ځمونږ څخه، او لـه اولادو ځمونږ څخه (هغه څوک چې) يخوالی د سترګو ځمونږ په کې راځي.

تفسير: يعنې داسې ښځه او واړه راعنايت وفرمايه؛ چې د هغو د ليدلو څخه ځمونږ سترګې يخې او رڼې شي، او زړه مو خوشال شي، او ظاهر دی چې د کامل مؤمن زړه هلته خوښ او خوشالېږي؛ کله چې خپل آل او عيال د الله تعالی په طاعت او عبادت کې مشغول او لګيا ووينې، او وېې ګوري چې د نافع علم تحصيل کوي، نو ګرد دنيوي مسرّتونه او نعمتونه وروسته له دغه دي.

وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ﴿٧٤﴾

او وګرځوه مونږ لپاره د متقيانو امام پيشوا.

تفسير: يعنې داسې مو وګرځوې کله چې نور خلق پر مونږ پسې اقتداء وکړي؛ متقيان او پرهېزګاران وګرځي، حاصل يې دا چې نه يوازې مونږ پخپل ذات مهتديان شو، بلکه د نورو لپاره هم هاديان وګرځو، او ځمونږ کورنی په تقوی او طهارت کې ځمونږ تابعان او پيروان شي.

أُولَٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَامًا ﴿٧٥﴾

دغه کسان (موصوف په دغو صفاتو سره) جزا به ورکوله شي دوی ته په هسکو (اوچتو) ماڼيو (د جنت) په سبب د هغه چې صبر يې کړی وو، او وابه چولی شي پر دوی په دغه جنّت کې تحيّت دعاء او سلام.

تفسير: يعنې په جنّت کې به لوړې (اوچتې) درجې ورورسيږي، او پرښتې به دعاوې ورته کوي، او سلامونه به وراچوي، او دوی ته به ښه راغلاست وايي، او استقبال به يې کوي، دوی به هم پخپلو منځونو کې د ملاقات او ليدلو په اوقاتو کې همدغه د سلام او د تحيّت دعائيه کلمات د يوه او بل د تکريم او اعزاز لپاره استعمالوي.

خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۗ حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَّمُقَامًا۝۷۶

همېشه به وي دوی په دغه (جنّت) کې، ښه دی (دغه جنّت) له جهته د ځای د قرارۍ، او له جهته د ځای د هستوګنې.

تفسير: يعني د داسې ځای هستوګنې که د لږې مودې لپاره هم چاته ميسره او په لاس ورشي؛ خو لوی غنيمت او ښه نعمت دی، حال دا چې دغه ځای خو د جنتيانو د دائمي اوسېدلو ځای دی.

قُلْ مَا يَعْبَؤُا بِكُمْ رَبِّيْ لَوْلَا دُعَآؤُكُمْ ۚ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُوْنُ لِزَامًا۝۷۷

ووايه (ای محمده ! دوی ته چې) نه کوي هيڅ پروا د تاسې رب ځما که چېرې نه وي دعاء بلل ستاسې (الله ته په سختيو کې)، او په تحقيق تکذيب کړی دی تاسې (د رسولانو او د قرآن)، پس ژر به شي (دا عذاب له تاسې سره جزاء د تکذيب) لازم.

تفسير: يعني تاسې ته ستاسې د نفعې او د نقصان خبرې در وښيي، بنده ته ښايي چې له سره مغرور او بې باکه نشي، ځکه چې پاک الله له سره د ده پروا نه لري، هو ! که بنده الله جل جلاله ته التجاء او دعاء کوي؛ نو الله هم پرې رحم او کرم فرمايي، او که التجاء نه کوي، او ځان لوی او بې پروا ښکاره کوي، نو د الله تعالی هغې سزا او پوښتنې ته دې منتظر اوسي، چې عنقريب ورسره مخامخ کېدونکې دی.

تمّت سورة الفُرقان، بعون الله المنّان، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الشُّعَرَاءِ

«د (الشعرآء) سورت مكّي دی، پرته له (۱۹۷) آيته او له (۲۲۴) تر آخر د سورت پورې چې مدني دي، (۲۲۷) آيته (۱۱) ركوع لري، په تلاوت كې (۲۶) او په نزول كې (۴۷) سورت دی، وروسته د «الواقعة» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

طٰسٓمٓ ۝١ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ۝٢ لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَّفْسَكَ اَلَّا يَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ۝٣

دا (آيتونه د دې سورت) آيتونه دي د كتاب ښكاره كوونكي (د حق له باطله، او د حلال له حرامه) يعنې د دې كتاب اعجاز ظاهر او باهر دی، او احكام يې واضح دي، او د حق او باطل په منځ كې بېلوونكی دی. ښايي چې ته هلاكوونكی د ځان خپل يې (ای محمده) په دې چې ولې نه كېږي دوی مؤمنان.

تفسير: يعنې ددغو بد بختانو په غم كې تاسې خپل ځان دومره مه كړوی، ايا پر دوی پسې خپل ځان هلاكوئ.

اِنْ نَّشَاْ نُنَزِّلْ عَلَيْهِمْ مِّنَ السَّمَآءِ اٰيَةً فَظَلَّتْ اَعْنَاقُهُمْ لَهَا خٰضِعِيْنَ ۝٤

كه اراده وفرمايو مونږ؛ نو نازل به كړو مونږ پر دوی له (طرفه) د اسمانه يو دليل، پس شي به ورمېږونه د دوی هغه (دليل د قدرت) ته غاړه ايښودونكي.

تفسير: يعنې دغه دنيا د ابتلاء ځای دی، چې په كې د بندګانو د انقياد او تسليم او د سركشی امتحان اخيستل كيږي، نو ځكه د الله تعالى حكمت د دې خبرې مقتضي نه دی، چې د هغوی اختيار سلب كړ شي، كه نه كه الله تعالى فرمايلی وی؛ نو كومه داسې اسماني نښه به يې ورښوولې وه، چې د هغې په مقابل كې به ګردو خلقو قهرًا او جبرًا خپلې غاړې كېښودې، او ډېرو لويو لويو مشرانو ته به هم د دې خبرې قدرت او فرصت او موقع نه وی پاتې چې ترې انكار او انحراف وكړي، نو الله تعالى داسې ونه كړه، هو ! هغه معجزې او نښې يې ولېږلې چې د هغو په ليدلو انسان حق او حقيقت په اسانی سره وپېژندلی شي، او كله كله د هغه په مقابل كې مغلوب هم شي، او دغاړې كېښودلو څخه ځان ونشي ژغورلی (بچ كولی).

وَمَا يَاْتِيْهِمْ مِّنْ ذِكْرٍ مِّنَ الرَّحْمٰنِ مُحْدَثٍ اِلَّا كَانُوْا عَنْهُ مُعْرِضِيْنَ ۝٥

او نه راځي دوی ته هيڅ پند وعظ له (طرفه) د رحمان نوی؛ مګر وي دوی له هغه (پند) څخه مخ ګرځوونكي (او لا كلكېدونكي په كفر خپل).

تفسير: يعنې د هغو خلقو په غم كې چې تاسې اخته يئ؛ د دوی حالت دا دی چې هر كله «رحمان» جلّ جلاله پخپل رحمت او شفقت سره د دوی د ښېګنې او نېكی لپاره كوم پند او نصيحت ليږي؛ دوی هغه طرف ته نه متوجه كيږي، بلكه مخونه ګرځوي او ترې تښتي، او داسې راښكاره كوي لكه چې له كوم بد شي سره مخامخ شوي دي.

فَقَدْ كَذَّبُوا فَسَيَأْتِيهِمْ أَنْبَٰٓؤُا مَا كَانُوا بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ﴿٦﴾

پس په تحقيق تكذيب وكړ دوى (د هغه ذكر يا محمد)؛ پس ژر به راشي دوى ته عواقب حقائق د هغه (څيز) چې وو دوى چې په هغه باندې به يې مسخرې كولې.

**تفسير:** يعنې يواځې همدغه معمولي اعراض نه دى، بلكه له هغه سره لا تكذيب او استهزاء هم دي، نو دوى به عنقريب په دنيا او آخرت كې د خپلو اعمالو سزا وګوري، نو بيا به د هغه څيز په حقيقت باندې په ښه شان سره وپوهيږي، چې په كوم شي باندې چې مونږ مسخرې كولې او ملنډې (خندا) مو پرې وهلې، او تكذيب به مو كاوه؛ هغه د الله تعالى حق أحكام او صحيح وو.

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الْأَرْضِ كَمْ أَنْبَتْنَا فِيهَا مِنْ كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ﴿٧﴾ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿٨﴾

آيا نه ګوري دوى ځمكې ته چې (په خپل بالغه حكمت سره) څومره زرغون كړي دي مونږ په دغه (ځمكه) كې له هر قسم هر ډول (جنس) ګياه ښه (كثير المنافع، مخصوص شيان). بېشكه په دغو (زرغونولو كې) خامخا دليل نښه ده (لويه د قدرت)، او نه دي زياتره د دوى مؤمنان.

**تفسير:** يعنې كه دغو مكذّبينو د دغې ځمكې پر احوال غور او فكر چلولى وى، چې د دوى تر پښو لاندې لوېدلې ده؛ نو د مبدأ او معاد په معرفت حاصلولو كې به هغه د دوى لپاره كافي كېدلى شوى، آيا دوى نه ګوري چې له دغه ذليلې، خوارې او حقيرې خاورې څخه څرنګه عجيب او غريب،او رنګ په رنګ ګلان، مېوې، دانې، او قسم په قسم غلې او نور شيان تر يوه مضبوط اصول او د تكوين او نظام تر قوانينو لاندې پيدا كيږي، !، آيا دغه د دې خبرې دليل نه دى چې كوم لا محدوده قدرت او حكمت لرونكى صانع دغه له ښايست ډك او سينګاري چمن دغه ښه او ښكلي ګلان كرلي دي؛ چې د هغه په واك او قبضه كې د وجود او ګردو موجوداتو زمام او اختيار هم دى؟، او دى هم هغه ذات دى هر كله چې اراده وفرمايي؛ هغه ورانولى هم شي، وروسته له ورانى د هغه دويم ځلې ودانې هم د ده په قدرت كې ده، بيا سره د دغو تكويني آيتونو د پوهېدلو څخه وروسته ولې تاسې د دغو تنزيلي آيتونو تصديق نه كوئ؟ آيا په دغه كې څه اشكال باقي دى؟ هو ! كه يې له سره نه منئ؛ نو دغه بېله خبره ده.

وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٩﴾

او بېشكه رب ستا خامخا هم دى دى ښه قوي غالب (په انفاذ د احكامو) ښه رحم كوونكى.

**تفسير:** يعنې الله خو داسې يو عزيز مقتدر او زبردست ذات دى، چې د نه منلو په تقدير على الفور پر منكرينو عذاب هم لېږلى شي، مګر دى پخپله د خپل رحم او كرم له مخې په هغه كې تأخير كوي، او دوى ته موقع وركوي چې ګوندې دوى يې ومني، وروسته د مكذبينو د عبرت لپاره د څو واقعاتو بيان فرمايي، چې له هغو څخه دغه خبره ظاهريږي چې الله تعالى هغوى ته تر كومې اندازې پورې مهلت وركړى وو، كله چې على رؤوس الأشهاد معلوم او ښكاره شو چې هغوى په هيڅ ډول د حق او حقانيت منونكى نه دي؛ نو بيا يې زياتره دوى تباه او برباد كړل.

وَإِذْ نَادَىٰ رَبُّكَ مُوسَىٰٓ أَنِ ائْتِ الْقَوْمَ الظَّٰلِمِينَ ﴿١٠﴾ قَوْمَ فِرْعَوْنَ ۚ أَلَا يَتَّقُونَ ﴿١١﴾

او (ياد كړه) هغه وخت چې غږ وكړ رب ستا موسى ته داسې چې ورشه هغه قوم ته چې ظالمان دي (يعنې) قوم د فرعون ته (چې ډېر ظلمونه كوي)، آيا نه ويريږي دوى له (الله).

**تفسير:** يعنې اى موسى ! ته لاړ شه ! دوى د الله تعالى له قهره وويروه !.

قَالَ رَبِّ إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُكَذِّبُونِ ﴿۱۲﴾ وَيَضِيقُ صَدۡرِي وَلَا يَنطَلِقُ لِسَانِي فَأَرۡسِلۡ إِلَىٰ هَٰرُونَ ﴿۱۳﴾

وويل موسى: اى ربه ځما ! بېشكه زه ويرېږم له دې نه چې نسبت د دروغو به وكړي (دوى ماته). او بل تنګيږي سينه ځما (له تكذيبه د دوى) او (بل) نه چليږي ژبه ځما (صافه خلاصه په وخت د تبليغ كې)؛ پس ولېږه (جبريل په وحيې سره) طرف د هارون ته.

**تفسير:** يعني قبطيان به ځما د پوره خبرې د اورېدلو څخه لا له پخوا ځما په دروغجن ګڼلو باندې خوله وپرانيځي، او په هغه مجلس كې به مې هيڅوك تاييد كوونكى نه وي، ممكن دي چې په دغه وخت كې زه ملول او حزين شم، او فكر او طبيعت مې خراب شي، او په زړه كې مې خفګان او تنګي راشي، او ژبه به مې چې لكنت او بندش هم لري، د زړه د دغه تنګۍ څخه لا په كې زيات نيونه او بندېدل ځرګند (ښكاره) شي، نو كه ځما د تقويت لپاره ځما وزير او ملګرى هارون وګرځوې؛ نو ستا زيات لطف او مهرباني به وي، ځكه چې هغه له ما ځنې فصيح اللسان دى.

وَلَهُمۡ عَلَيَّ ذَنۢبٌ فَأَخَافُ أَن يَقۡتُلُونِ ﴿۱۴﴾

او (بل) شته دوى لره پر ما (دعوى د يوې) ګناه، پس ويرېږم له دې نه چې مړ به مې كړي.

**تفسير:** يعني د يوه قبطي د وينې دعوى چې د هغه تفصيل به د القصص په سورت كې راځي، پر ما باندې دائره ده؛ نو زه ويرېږم چې پخوا له دعوت او تبليغه ځما كار تمام نه كړي، چې دغه خو هم هغه سړى دى چې ځمونږ يو قبطي يې وژلى وو، او راځنې تښتېدلى وو، نو په دغه تقدير سره به زه د تبليغ فرض ځرنګه اداء كړى شم؟.

قَالَ كَلَّاۖ فَٱذۡهَبَا بِـَٔايَٰتِنَآۖ إِنَّا مَعَكُم مُّسۡتَمِعُونَ ﴿۱۵﴾

وفرمايل (الله موسى ته) نه ده داسې (مه ډارېږه ! نه دې شي وژلى)، پس لاړ شئ تاسې دواړه په ښكاره معجزو ځما، بېشكه چې مونږ له تاسې سره يو اوريدونكي (ستاسې د سوال او جواب هم).

**تفسير:** يعني قبطيان به څه مجال لري، چې تاته لاس در وړى شي، ورځه ! د خپلې استدعاء سره سم هارون عليه السلام هم له خپله ځانه سره بوځه !، او ځمونږ له دركړې معجزې او نښې سره ورشه !، كله چې د قدرت لويې نښې له تاسې سره شته؛ نو ولې به ويرېږې؟ نښې لا څه كوئ چې زه پخپله هم پر هره موقع كې له تاسې سره يم چې كومك در سره كوم، او د دواړو خواوو خبرې او اترې هم اورم.

فَأۡتِيَا فِرۡعَوۡنَ فَقُولَآ إِنَّا رَسُولُ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿۱۶﴾ أَنۡ أَرۡسِلۡ مَعَنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ﴿۱۷﴾

پس ورشئ دواړه فرعون ته ! نو ووايئ ببشكه چې هر يو له مونږ څخه رسول استاځى د رب د عالميانو يو. په دې خبره باندې چې ولېږه ته (اى فرعونه) له مونږ سره بني اسرائيل (اولاده د يعقوب شام ته).

**تفسير:** د بني اسرائيلو وطن د ابراهيم عليه السلام په زمانه كې د شام ملك وو، د يوسف عليه السلام په سبب دوى مصر ته راغلل، هلته يې يو مدّت تېر كړ، اوس د الله تعالى اراده داسې وشوه، چې دوى ته بېرته هم هغه د شام ملك وركړي، خو فرعون دوى نه پرېښودل چې شام ته لاړ شي، ځكه چې له دوى ځنې به يې د مريانو په شان كار اخيست، او موسى عليه السلام د بني اسرائيلو د ازادى او خپلواكى طالب وو.

قَالَ اَلَمْ نُرَبِّكَ فِيْنَا وَلِيْدًا وَّلَبِثْتَ فِيْنَا مِنْ عُمُرِكَ سِنِيْنَ ﴿۱۸﴾

نو وويل (فرعون موسی ته) آيا تربيت نه وو کړی مونږ د تا په (کورونو) خپلو کې په دې حال کې
چې وړوکی هلك وې، او تېر کړي وو تا په مونږ کې له عمره خپله څو کاله (چې د پرش وو).

تفسير: يعنې ته هم هغه نه يې چې په ډېر ناز او نعم څمونږ په کور کې ستا پالنه او روزنه شوې وه؟ او څمونږ په لاس کې وړوکی لوی شوی وې، اوس ستا دماغ دومره لوی شوي دي چې له مونږ څخه داسې مطالبات کوې؟ او خپل مشرتوب پر مونږ ثابتوې !.

وَفَعَلْتَ فَعْلَتَكَ الَّتِيْ فَعَلْتَ وَاَنْتَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹﴾

او بل کړی وو تا کار خپل هغه کار چې کړی وو تا (يعنې څما قبطي دې وژلی وو) حال دا چې
ته (ای موسی) له ناشکرانو څخه يې.

تفسير: په دومره کلونو کې دې داسې دعوی نه کوله، کله چې له دې ځايه څو شپې د باندې لاړې، او اوس چې بېرته راغلې؛ نو د رسالت دعوی کوې؟ او څمونږ هغه ټول احسانات دې هېر کړل، او اوس دې د نبوّت په دعوی لاس پورې کړی دی، په هغه وخت کې ته هم (العياذ بالله) له همدغو خلقو يو سړی وې، چې نن ورځ هغو ټولو ته کافران وايې.

قَالَ فَعَلْتُهَا اِذًا وَّاَنَا مِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿۲۰﴾

وويل (موسی فرعون ته) چې: کړی وو ما دغه کار په هغه وخت کې چې وم زه له خطاکارانو
ناپوهانو.

تفسير: په دې چې مړ به شي په يو سوك څما، يعنې ما هغه قبطي په عمد سره نه دی وژلی، په خطا سره څما په يوه سوك سره مړ شو، زه که پوهېدی چې دی څما په يوه سوك سره مري؛ نو ولې به مې تأديب ورکاوه: ﴿فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى فَقَضٰى عَلَيْهِ﴾ (القصص سورت (۲) رکوع، (۱۵) آيت (۲۰) جزء).

فَفَرَرْتُ مِنْكُمْ لَمَّا خِفْتُكُمْ فَوَهَبَ لِيْ رَبِّيْ حُكْمًا وَّجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۱﴾

پس وتښتېدم زه له تاسې کله چې وويرېدم زه له تاسې، پس وبښنه ماته رب څما حکم علم فهم
او وګرځولم (دغه الله) زه له رسولانو څخه.

تفسير: يعنې بېشکه چې زه وويرېدم او له دې ځايه وتښتېدم، ليکن د الله تعالی دا منظور وو، چې ماته پخپل فضل او مرحمت سره نبوّت او حکمت مرحمت کړي، او د رسالت په کرامت سره مې سرلوړی (اوچت) او ممتاز وګرځوي، او ستاسې په لور مې درولېږي، دا دی چې زه په امر د الله سره درغلی يم، چې تاته سمه صافه لاره دروښيم، او دغه څه اظهارات چې تاسې وکړل، دغه ګرد څما د صداقت دليل دی، چې هغه سړی چې ستاسې له وېرې تښتېدلی وو؛ بيا څرنګه داسې بې خوفه او بې خطره ستاسې په مخ کې نېغ ولاړ دی؟.

وَتِلْكَ نِعْمَةٌ تَمُنُّهَا عَلَيَّ اَنْ عَبَّدْتَّ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ﴿۲۲﴾

او (آيا) دغه (تربيت) يو نعمت دی چې احسان يې کوې پر ما باندې (چې هغه ستا له شفقته نه وو،
بلکه له دې جهته وو) چې مريونه کړي دي وو بني اسرائيل.

**تفسیر:** یعني ځما د وړوکوالي د پالنې احسان راڅرګندول (ښکاره کول) تاته ښه نه ښکاري، آیا د یوه اسرائیلي وړکي پالنه او تربیت د دغې خبرې جواب کېدی شي چې تا ګرد د بني اسرائیلو قوم له آزادی څخه محروم ګرځولی دی، او له دوی سره د بندګانو او مریانو په شان سلوک کوې، بالخصوص چې د دغه وړوکي پالنه هم ستا د هغو زړه چاودونکیو مظالمو او تېریو په سلسله کې واقع شوې وه، که تا هغسې ظلم او تېری نه کولی، او ګرد بني اسرائیلي هلکان دې نه وژلی؛ ولې به مې مور ژوندی په تابوت کې غورځولم؟ او بیا هغه تابوت یې ولې په سیند کې لاهو کاوه؟ او ولې به زه ستا حرام سرای ته رسېدم؟ د دغو حالاتو له تصوّره تاته داسې احسان له څرګندولو څخه شرم او ننګ پکار دی، او صافه خبره خو دا ده، هغه الله تعالی چې ځما تربیت او پالنه ستا په شان د یوه دښمن کره کړې ده؛ هم هغه الله مې نن ورځ ستا د خیر غوښتلو او لار ښوولو لپاره خپل رسول ګرځولی او لېږلی یم.

قَالَ فِرۡعَوۡنُ وَمَا رَبُّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢٣

وویل فرعون (موسی ته) او څه شیز دی رب د عالمیانو؟.

**تفسیر:** یعني موسی علیه السلام د ﴿فَقُولَآ إِنَّا رَسُولُ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ﴾ په امتثال خپل ځان یې د رب العالمین رسول وباله، د ده په مقابل کې فرعون د جحود، تعنّت، ضد او عناد له لارې (العیاذ بالله) وویل چې: رب العالمین څه شی دی؟ سره ځما له وجوده د بل کوم رب نوم اخیستل څه معنی لري؟ ځکه چې د دې ازلي شقي دعوی د خپل قوم په مخ کې داسې وه: ﴿مَا عَلِمۡتُ لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرِي﴾ «ز ماسوا له خپل ځانه بل کوم معبود تاسې ته نه پېژنم»، او ﴿أَنَا۠ رَبُّكُمُ ٱلۡأَعۡلَىٰ﴾ «زه یم ستاسې لوی پروردګار»، لکه چې د ده قوم به ځینې له انتهایي جهل او بلادت، او ځینې له خوفه او طمعې د ده په عبادت لګیا وو، اګر که په خپل زړه کې دغه ملعون هم د الله په وجود یقین لرلو لکه چې له ﴿قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَآ أَنزَلَ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ بَصَآئِرَ﴾ څخه ظاهرېږي، (۱۵ جزء، د بني اسرائیل سورت (۱۲) رکوع، (۱۰۲) آیت).

قَالَ رَبُّ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَآۖ إِن كُنتُم مُّوقِنِينَ ۝٢٤

وویل موسی (په جواب د فرعون کې) چې: رب العالمین رب د اسمانونو او د ځمکې او د هغو ګردو شیانو دی چې په منځ د دغو دواړو کې دي، که چېرې یئ تاسې یقین کوونکي (نو ایمان پرې راوړئ).

**تفسیر:** یعني د اسمان او د ځمکې ګرد شیان چې د هغه لوی ذات تر اداري او تربیت لاندې دي؛ هغه هم رب العالمین دی، که ستاسې په زړونو پر کوم شي باندې د یقین راوړلو استعداد موجود وي؛ نو انساني فطرت له ګردو ځینې پخوا پر دغه ربّ العالمین د یقین کولو لپاره کافي دی.

قَالَ لِمَنۡ حَوۡلَهُۥٓ أَلَا تَسۡتَمِعُونَ ۝٢٥

وویل (فرعون) هغو (مشرانو) ته چې چاپېر وو له ده سره، چې آیا نه اورئ تاسې (دغه ځواب د ده چې نه دی موافق له سواله سره).

**تفسیر:** فرعون عمدًا او په قصد سره غوښتنه وکړه، چې خبره ګډه وډه او تالا کړي، نو د خپلو درباریانو او نوکرانو د تېزولو او هڅولو لپاره او د موسی علیه السلام د خبرې د خفیفولو لپاره یې داسې وویل چې: «اورئ چې موسی څومره له کاره لرې خبرې کوي؟ آیا له تاسې ځنې به کوم یو تصدیق کوي چې ماسوا له مانه په اسمان او ځمکه کې بل کوم رب شته؟».

قَالَ رَبُّكُمْ وَرَبُّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۲۶﴾

وويل (بيا موسی فرعون ته چې رب العالمين) رب د تاسې دی او رب د پلرونو د تاسې دی چې ړومبي وو.

تفسير: يعني ای احمقانو ! زه چې د کوم رب العالمين ذکر کوم؛ هغه داسې يو لوی ذات دی، چې ستاسې او ستاسې د پلرونو او نيکه ګانو پيدا کوونکی دی، څه وخت چې ستاسې بوی او تخم هم نه وو؛ ده په هغه وخت کې هم د ځمکې او اسمان تربيت او تدبير کاوه.

قَالَ اِنَّ رَسُوْلَكُمُ الَّذِيْٓ اُرْسِلَ اِلَيْكُمْ لَمَجْنُوْنٌ ﴿۲۷﴾

وويل (فرعون) بېشکه رسول ستاسې دغه چې لېږلی شوی دی تاسې ته خامخا مجنون لېونی دی.

تفسير: يعني (العياذ بالله) يو ليونی يې رسول ګرځولی دی، او لېږلی يې دی، چې نه يواځې مونږ بلکه ځمونږ پلرونه او نيکه ګانو ته هم بد وايي، او ځمونږ د دغه شوکت او حشمت څخه لږ څه هم نه متأثر کيږي، او نه يې ترې ستر ګې سوځي، نو معلوميږي چې د ده دماغ او ماغزه بالکل له عقل څخه عاري شوي دي.

قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۭ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾

وويل (بيا موسی فرعون ته چې رب العالمين) رب د مشرق او (رب د) مغرب او (رب د) هغو ټولو شيانو دی چې په منځ د دغو کې دي، که چېرې يئ تاسې چې څه قدر عقل کولی شئ (نو ايمان راوړئ په وحدانيت د الله).

تفسير: موسی عليه السّلام بيا يوه داسې خبره وکړه لکه چې ابراهيم عليه السلام د نمرود په مقابل کې کړې وه، يعنې ربّ العالمين هغه ذات دی چې د مشرق او مغرب مالک دی، او د ټولو ستوريو د طلوع او غروب تدابير په يوه ټينګ او مضبوط نظام موافق کوي.

که په تاسې کې لږ څه عقل او پوهه وي؛ نو په دغه باندې پخپله هم پوهېدی شئ، چې د دغه عظيم الشأن نظام قائم ساتونکی ماسوا له الله تعالی څخه بل هيڅوک نشي کېدی.

د دغې وروستنی خبرې د اورېدلو څخه فرعون بالکل متحيّر او مبهوت شو، او د مباحثې او مجادلې څخه يې مخ واړاوه، او په ويرولو او ډارولو سره يې خپله خوله وسپړدله، لکه چې وروسته له دې نه راځي.

قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ اِلٰهًا غَيْرِيْ لَاَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُوْنِيْنَ ﴿۲۹﴾

وويل (فرعون موسی ته) قسم دی که چېرې ونيو تا معبود غير له مانه (بل څوک)؛ نو خامخا وبه ګرځومه زه هرومرو تا له بنديانو څخه.

تفسير: په دغه ځلي فرعون خپل مطلب په صافو الفاظو سره ښکاره کړ، چې دلته په مصر کې بل هيڅ يو معبود نشته، که پر ته (علاوه) له ما ځني د بل کوم معبود حکومت ومنلی شي؛ نو په ياد يې ولرئ چې دغسې نورو معبود منونکيو لپاره ځما بندي خانه تياره ده.

قَالَ اَوَلَوْ جِئْتُكَ بِشَيْءٍ مُّبِيْنٍ ﴿۳۰﴾

وويل (موسى فرعون ته) آيا (نه كوې باور په الوهيت د الله؟) اګر كه راوړم زه تاته دليل يو شى ښكاره (دليل ښكاره كوونكى).

**تفسير:** يعنې پخپله دغه فيصله كې اوس تلوار مه كوه !، دغه خو ستا د خبرې جواب وو، اوس خو لږ هغه ښكاره معجزې هم وګوره، چې په هغو سره د الله تعالى قُدرت او ځما صداقت دواړه در څرګندېږي (ښكاره كيږي).

قَالَ فَأْتِ بِهٖٓ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۳۱﴾ فَاَلْقٰى عَصَاهُ فَاِذَا هِيَ ثُعْبَانٌ مُّبِيْنٌ ﴿۳۲﴾ وَّنَزَعَ يَدَهٗ فَاِذَا هِيَ
بَيْضَآءُ لِلنّٰظِرِيْنَ ﴿۳۳﴾ قَالَ لِلْمَلَاِ حَوْلَهٗٓ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾ يُّرِيْدُ اَنْ يُّخْرِجَكُمْ مِّنْ اَرْضِكُمْ بِسِحْرِهٖ ۖ فَمَاذَا
تَاْمُرُوْنَ ﴿۳۵﴾

وويل (فرعون موسى ته) پس راوړه هغه (ښكاره دليل) كه يې ته له صادقانو رښتيا ويونكيو (په دعوى خپله كې). پس وغورځوله (موسى) همسا خپله، پس ناڅاپه په دغه وخت كې وه هغه يو ښامار ښكاره ظاهر. او راويې ايست لاس خپل (له دننه د ګرېوان خپل) پس ناڅاپه دغه (لاس) وو تک سپين (نظر د) کتونکيو ته. نو وويل (فرعون) اشرافو (د قوم) ته چې چاپېر د ده (ناست وو): بېشکه دغه (سړى) خامخا ساحر (کوډګر) دى ډېر پوه. اراده لري د دې چې وباسي تاسې له ځمکې (وطن) ستاسې په سحر (کوډو) خپل سره، پس څه (امر حکم مشوره) راکوئ تاسې (ماته د موسى په باره کې).

**تفسير:** فرعون چې تر اوسه پورې د الوهيت مدّعي وو، اوس داسې وارخطا او بد حواسه شوى دى، چې له خپلو مريانو، نوكرانو، او د ده په زعم له خپلو بندګانو څخه مشورې غواړي، او دې ته حاضر دى چې د هغو پر ښوونه تګ هم وكړي.

قَالُوْٓا اَرْجِهْ وَاَخَاهُ وَابْعَثْ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِيْنَ ﴿۳۶﴾ يَاْتُوْكَ بِكُلِّ سَحَّارٍ عَلِيْمٍ ﴿۳۷﴾ فَجُمِعَ السَّحَرَةُ لِمِيْقَاتِ
يَوْمٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿۳۸﴾

وويل (مشرانو) تأخير وركړه (كار د) دغه (موسى) ته او ورور د ده (هارون) ته، او ولېږه په ښارونو كې راټولونكي (محصلان). چې راولي تاته هر ښه ساحر (کوډګر) ښه هوښيار. پس را ټول كړل شول ساحران وعدې د ورځې معلومې ته (چې ځانښت د ورځې جشن وو).

**تفسير:** يعنې د اختر ورځ د ځانښت په مهال (وخت).

وَّقِيْلَ لِلنَّاسِ هَلْ اَنْتُمْ مُّجْتَمِعُوْنَ ﴿۳۹﴾ لَعَلَّنَا نَتَّبِعُ السَّحَرَةَ اِنْ كَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۴۰﴾

او وويل شو خلقو ته چې آيا يئ تاسې يو ځاى كېدونكي (دغې معلومې ورځې ته، بلكه ګرد سره راټول شئ !). ښايي چې مونږ متابعت (قبول) كړو (لارې د) ساحرانو كه چېرې شول دوى همدوى غالبان برياليان (پر موسى).

تفسير: يعني پر ډولو لازم دي چې هلته يو ځاى شي، مونږ قوي هيله (ارزو) او اميد لرو چې ځمونږ کوډګران به برياليان (کامياب) شي، نو هله به د موسى د مغلوبيت او د ماتې د ښه ښکاره کولو لپاره د خپلو کوډګرانو په لاره ځو، ګواکې د دغې خبرې اظهار مقصود وو، چې په دغه کې مونږ له خپله ځانه څه غرض او مقصد نه لرو، کله چې په مقابله کې ځمونږ پله درنه وختله؛ نو بيا انصافًا څوک حق نه لري، او نشي کولاى چې ځمونږ له طريقې څخه منحرف شي.

فَلَمَّا جَآءَ السَّحَرَةُ قَالُوا لِفِرۡعَوۡنَ أَئِنَّ لَنَا لَأَجۡرًا إِن كُنَّا نَحۡنُ ٱلۡغَٰلِبِينَ ﴿٤١﴾ قَالَ نَعَمۡ وَإِنَّكُمۡ إِذًا لَّمِنَ ٱلۡمُقَرَّبِينَ ﴿٤٢﴾

پس کله چې راغلل ساحران (کوډګران)؛ وويل دوى فرعون ته: آيا په تحقيق وي به مونږ ته خامخا څه اجر (مزدوري) که چېرې شو مونږ همدا مونږ غلبه کوونکي (برياليان). نو وويل (فرعون کوډګرانو ته) هو ! (تاسي لره اجر شته، او علاوه پر هغه) بېشکه چې تاسو په دغه وخت کې خامخا له مقربانو (مصاحبانو ځما يئ).

تفسير: يعني نه يوازې مالي انعام او اکرام به درکړم، بلکه تاسې به ځما د خاصو مصاحبانو په ډله کې هم داخلېږئ، د دغو آيتونو مفصّل بيان د «الأعراف» او د «طه» په سورتونو او نورو ځايونو کې پخوا ليکلى شوى دى.

کله چې ساحران د جشن په ورځ د ګردو خلقو په مخکې ميدان ته راغلل، او د ننداره کوونکيو صفونه وتړل شو؛ نو:

قَالَ لَهُم مُّوسَىٰٓ أَلۡقُوا مَآ أَنتُم مُّلۡقُونَ ﴿٤٣﴾

وويل دغو (کوډګرانو) ته موسى: وغورځوئ تاسې هر هغه څيز چې تاسې غورځوونکي يئ (د هغه).

تفسير: يعني څه وخت چې کوډګرانو وويل چې: اى موسى عليه السلام ! ته دې خپله همسا ړومبى غورځوې يا يې مونږ وغوځوو؟ موسى عليه السلام د دوى په ځواب کې وفرمايل چې: «تاسې يې ړومبى وغورځوئ !، او خپل پوره زور او قوّت هم په کې صرف کړئ !».

فَأَلۡقَوۡا حِبَالَهُمۡ وَعِصِيَّهُمۡ وَقَالُوا بِعِزَّةِ فِرۡعَوۡنَ إِنَّا لَنَحۡنُ ٱلۡغَٰلِبُونَ ﴿٤٤﴾

پس وغورځول (کوډګرانو) پړي خپل او همساګاني خپلې، او وويل (کوډګرانو): په عزت (اقبال) د فرعون بېشکه مونږ خامخا همدا مونږ يو غالبان (برياليان).

تفسير: ځينو ﴿بِعِزَّةِ فِرۡعَوۡنَ﴾ د قسم په معنى اخيستى دى، يعني د فرعون پر اقبال قسم خورو چې همدا مونږ برياليان (غالبان) کېږو.

فَأَلۡقَىٰ مُوسَىٰ عَصَاهُ فَإِذَا هِيَ تَلۡقَفُ مَا يَأۡفِكُونَ ﴿٤٥﴾

بيا وغورځوله موسى همسا خپله، پس ناڅاپه هغې (همسا) ونغړل (ښوى تېر کړل) هغه (ماران) چې (ساحرانو) په دروغو جوړ کړي وو.

فَأُلْقِيَ السَّحَرَةُ سُجِدِينَ ﴿٤٦﴾ قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ الْعٰلَمِينَ ﴿٤٧﴾ رَبِّ مُوسٰى وَهٰرُونَ ﴿٤٨﴾ قَالَ آمَنْتُمْ لَهُ قَبْلَ أَنْ آذَنَ
لَكُمْ إِنَّهُ لَكَبِيرُكُمُ الَّذِي عَلَّمَكُمُ السِّحْرَ فَلَسَوْفَ تَعْلَمُونَ لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ
وَلَأُصَلِّبَنَّكُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٤٩﴾

پس وغورځول شول پرمخي ساحران سجده کوونکي (الله ته)، (وويل ساحرانو:) ايمان راوړى دى مونږ په رب د عالميانو. رب د موسى او د هارون. وويل (فرعون ساحرانو ته:) آيا ايمان راوړلو تاسې په دغه (موسى) پخوا له هغه چې زه اذن (اجازه) درکړم تاسې ته (د ايمان راوړلو په ده)، بېشكه دغه (موسى) خامخا مشر دى ستاسې، هسې (مشر) چې ښوولى يې دى تاسې ته سحر (كوډې)، پس خامخا ژر به عالمان شئ (په جزا د عمل خپل)، خامخا زه به پرې کړم لاسونه د تاسې او پښې د تاسې سره مخالفې (ښى لاس او كيڼه پښه يا عكس د دې)، او خامخا وبه ځړوم (ځوړند به کړم) پر دار هرومرو تاسې ټول (چې مړه شئ او درنه عبرت واخلي نور).

**تفسير:** يعني موسى عليه السلام ستاسو لوى ښوونكى دى تاسې به خپلو منځونو کې سره دا غوټه کړې چې مونږ به داسې كوو.

قَالُوا لَا ضَيْرَ إِنَّا إِلٰى رَبِّنَا مُنْقَلِبُونَ ﴿٥٠﴾

وويل (ساحرانو) نشته ضرر مونږ ته په دې كې ځكه چې بېشكه مونږ رب خپل ته بېرته راتلونكي يو.

**تفسير:** يعني په هر حال وروسته له مرګه هرومرو د الله تعالى حضور ته بيول كيږو، په داسې موت سره مونږ د شهادت درجه مومو.

إِنَّا نَطْمَعُ أَنْ يَغْفِرَ لَنَا رَبُّنَا خَطٰيٰنَا أَنْ كُنَّا أَوَّلَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٥١﴾

(او بل ځكه چې) بېشكه مونږ طمعه هيله (اميد) لرو د دې چې وبخښي مونږ ته رب ځمونږ ګناهونه ځمونږ له جهته د دې چې يو مونږ (په دغو حاضرينو کې) ړومبى د ايمان راوړونكيو.

**تفسير:** يعني د موسى عليه السلام له دعوت او تبليغ څخه وروسته د دغې لويې مجمع په محضر او د ظالم فرعون په مخ كې له ګردو څخه ړومبى مونږ د حق د قبوليت اعلان وكړ، له دې نه داسې هيله (ارزو) او اميد كيږي چې الله تعالى به ځمونږ پخوانې ګرد تقصيرات معافوي.

وَأَوْحَيْنَا إِلٰى مُوسٰى أَنْ أَسْرِ بِعِبَادِي إِنَّكُمْ مُتَّبَعُونَ ﴿٥٢﴾

او وحې (حكم) ولېږه مونږ طرف د موسى ته داسې چې د شپې بوځه بندګان ځما (بني اسرائيل بحر ته) بېشكه چې تاسې پسې به درشي (فرعون سره له فرعونيانو).

**تفسير:** يعني څه وخت چې فرعون له يوې اوږدې مودې پورې سره د ويلو او پوهولو او د قدرت د نښو د ليدلو هم ايمان رانه ووړ، او حق يې ونه مانه، او د بني اسرائيلو د ايذاء او ضرر څخه يې لاس وانخيست؛ نو مونږ موسى عليه السلام ته حكم وركړ چې د شپې له مخې ته سره له قوم خپل له دې ځايه د هجرت په نيت ووځئ !، او خبردار اوسئ ! چې فرعونيان به هم په تاسې پسې درځي، او ستاسې تعقيب به په شدّت سره كوي، ښايي چې تاسې ترې ونه ويرېږئ !.

فَأَرْسَلَ فِرْعَوْنُ فِي الْمَدَآئِنِ حٰشِرِينَ ﴿۵۳﴾ إِنَّ هٰٓؤُلَآءِ لَشِرْذِمَةٌ قَلِيلُونَ ﴿۵۴﴾

پس ولېږل (فرعون) په ښارونو کې (يعني ښارونو ته محصلان) راټولوونکي (د لښکر، تر څو چې ګرد قبطيان ټول کړي او د سبطيانو «بني اسرائيلو» تعاقب وکړي). (او وويل فرعون) چې بېشکه دغه (بني اسرائيل) خامخا يوه ډله ده ډېره لږه.

تفسير: يعني د دغه وړوکي جمعيت له لاسه مونږ پکو (تنګ) شوي يو، حال دا چې د دوی هستي هيڅ شی ده، او د دوی موجوديت مونږ ته هيڅ وقعت او اهميت نه لري، او نه دوی څمونږ د جنګ او د مقابلې قوّت او توان لري، دغه خبرې يې د دې لپاره کولې چې د ده قوم په جوش او غيرت راشي.

وَإِنَّهُمْ لَنَا لَغَآئِظُونَ ﴿۵۵﴾

او بېشکه چې دغه (سبطيان) له مونږ زړه سوی (لړمون خوړين) دي.

تفسير: يا مونږ په قهر او غوسه راولي، يعني داسې کارونه کوي چې مونږ پر دوی په قهر شو، معلوم دی چې بدبختي او شقاوت دوی په دغه اړولی دی چې څمونږ قهر او غضب ځان ته وګټي.

وَإِنَّا لَجَمِيعٌ حٰذِرُونَ ﴿۵۶﴾

او بېشکه مونږ خامخا ټول (قبطيان مجرب محتاط يو، او له دغو سبطيانو نه) په خطره ويره کې يو.

تفسير: نو د دغې هرې ورځنۍ خطرې بېخ او بنسټ (بنياد) ايستل او دائمي قلع او قمع يې په کار ده، او راځئ چې يو ځلې يې له منځه ورك کړو، څينو مفسّرينو د دې ترجمه داسې کړې ده، چې: «څمونږ لښکر او جمعيت خورا ډېر دی، چې ګرد سره مسلّح، مجرب او محتاط دي»، نو دغه الفاظ به د تشويق او زړه ورتوب لپاره وي، والله أعلم.

نو وفرمايل الله تعالی جلّ و علا شأنُه وعظُم برهانُه:

فَأَخْرَجْنٰهُم مِّن جَنّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿۵۷﴾ وَكُنُوزٍ وَمَقَامٍ كَرِيمٍ ﴿۵۸﴾ كَذٰلِكَ وَأَوْرَثْنٰهَا بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ ﴿۵۹﴾

پس ويستل مونږ دغه (قبطيان) له باغونو او (له) چينو. او (له) خزانو او (له) مقام عمده (ښو ځايونو) نه. همداسې (وکړه مونږ له قبطيانو سره) او په ميراث مو ورکړل دغه (څيزونه) بني اسرائيلو ته.

تفسير: ﴿كَذٰلِكَ﴾ يعني په دې ډول قبطيانو کور کهول، مال دولت، باغونه او کښتونه (فصلونه) پرېښودل، او ګرد سره يو ځای د بني اسرائيلو په تعاقب ووتل، چې بيا بېرته ګرځېدل د هغوی په برخه نشو، ګواکې په دغه تدبير سره الله تعالی دوی د باندې وشړل.

يا خو دغه باغونه او چينې او خزانې او ښه ځايونه او نور شيان وروسته له هغه د بني اسرائيلو په لاس ورغلي دي، او يا څه موده وروسته د سليمان عليه السلام په دور کې د مصر مملکت هم دده په سلطنت کې شامل شو.

فَأَتْبَعُوهُم مُّشْرِقِينَ ﴿۶۰﴾ فَلَمَّا تَرَٰٓءَا الْجَمْعَانِ قَالَ أَصْحٰبُ مُوسَىٰٓ إِنَّا لَمُدْرَكُونَ ﴿۶۱﴾

پس وروسته د دغو (سبطيانو) لاړل دغه (قبطيان او ورسېدل) هغوی ته په وخت د ختلو د لمر پسې. پس کله چې سره وليدل دغو دواړو لښکرو (يو له بله سره)؛ نو وويل ملګريو د موسی چې بېشکه مونږ خامخا موندلی شوي يو (نيولی شوي يو) له جانبه د (قبطيانو).

**تفسير:** يعنې د قلزم د بحيرې (احمر بحيرې) څنډې (غاړې) ته ورسېدل، بني اسرائيل په دغه فکر کې وو چې په څه ډول له دغه سينده پورې وځي، چې د شا له طرفه د فرعونيانو لوی لښکر د فرعون په مشرتوب ورپسې ورسېد، اسرائيليان له دغه وضعيت څخه چې له يوه طرفه ډانګ او له بل طرفه پړانګ وو؛ ډېر سخت وويرېدل، او موسى عليه السلام ته يې وويل چې: اوس به مونږ د فرعونيانو له لاسه څرنګه نجات ومونډلی شو؟ چې وړاندې سمندر او وروسته دغه لوی لښکر دی، چې په ډېر قوّت او قدرت او زور و شور سره راځي؟.

قَالَ كَلَّآ ۖ إِنَّ مَعِىَ رَبِّى سَيَهْدِينِ ﴿٦٢﴾

وويل (موسى سبطيانو ته) چې نه ده داسې بېشکه له ما سره رب ځما دی په نصرت او اعانت، ژر به وښيي ماته (لاره د نجات).

**تفسير:** يعنې له سره مه ويرېږئ ! د الله تعالى پر مواعيدو ډاډه او مطمئن اوسئ !، ځکه چې د الله تعالى نصرت او حمايت له مونږ سره دی ! الله جل جلاله به هرومرو د نصرت او حمايت کومه لاره مونږ ته راوباسي، امکان نه لري چې مونږ به دښمنان ونيولی شي.

فَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰ مُوسَىٰٓ أَنِ ٱضْرِب بِّعَصَاكَ ٱلْبَحْرَ ۖ فَٱنفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَٱلطَّوْدِ ٱلْعَظِيمِ ﴿٦٣﴾

پس وحي (حکم) وکړ مونږ موسى ته، داسې چې ووهه ته په همسا خپلې بحر (د قلزم يا د نيل، پس ده وواهه)، پس وچاود (بحر، دولس ټوټې شو) پس شوه هره برخه (يوه ټوټه جدا شوې هسکه ـ اوچته) لکه اوږد لوړ (اوچت) غر (په هسکوالي ـ اوچتوالي کې).

**تفسير:** اوبو ډېر زيات ژوروالی درلود، له دولسو ځايونو څخه وچاودېدلې، خيرې شولې، او په کې وچې کلکې لارې جوړې شوې، او د بني اسرائيلو د دولسو قبيلو لپاره بېلې بېلې لارې په کې سازې شوې، او په منځ کې د اوبو لوی لوی ديوالونه د لويو لويو غرونو په شان ودرېدل (کذا في موضح القرآن).

وَأَزْلَفْنَا ثَمَّ ٱلْـَٔاخَرِينَ ﴿٦٤﴾ وَأَنجَيْنَا مُوسَىٰ وَمَن مَّعَهُۥٓ أَجْمَعِينَ ﴿٦٥﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا ٱلْـَٔاخَرِينَ ﴿٦٦﴾

او بيا را نژدې کړل مونږ دغه ځای ته هغه نور (يعنې قبطيان) او نجات ورکړ مونږ موسى او هغو (سبطيانو) ته چې له ده سره وو (له غرقه) ټول، بيا غرق کړل مونږ هغه نور (يعنې قبطيان).

**تفسير:** يعنې فرعوني لښکر هم نژدې ورسېد، او په بحر کې يې جوړې شوې لارې وليدلې، نو دوی بې له کوم فکر او اندېښنې په بني اسرائيلو پسې د اوبو په هغو لويو لويو کوڅو کې سره ورننوتل، کله چې فرعون او ګرد فرعوني لښکر د بحر منځ ته ورسېدل؛ نو على الفور د الله تعالى په حکم له دواړو خواوو د اوبو غرونه پرې ونښېدل، او ټولې اوبه سره يو ځای شوې، او دوی په کې مغروق شول، دغه قصه پخوا له دې نه هم ليکلې شوې ده.

إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٦٧﴾

بېشکه په دغه (غرق د قبطيانو کې) خامخا لوی دليل دی (د عبرت او د قدرت ځمونږ)، او نه وو زياتره د دوی مؤمنان.

وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٦٨﴾

او بيشکه رب ستا خامخا هم هغه دي ښه غالب قوي په انفاذ د أحکامو، او ښه رحم کونکی.

تفسير: دغه يې ځمونږ رسول الله ته اورولي دي چې د مکې معظمې فرعون ابوجهل او فرعونيانو کفّار د قريشو به هم په مسلمانانو پسې جنګ ته راووځي، بيا به له وطن څخه د باندې تباه کيږي، د «بدر» په ورځ لکه چې فرعون په رود نيل يا بحيره قلزم کې تباه شول، (موضح القرآن).

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرَاهِيمَ ﴿٦٩﴾ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا تَعْبُدُونَ ﴿٧٠﴾ قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ ﴿٧١﴾

او ولوله (اى محمده !) پر دغو (کفّارو د مکې) خبر (قصه) د ابراهيم ! کله چې يې وويل پلار خپل (آزر) ته او قوم خپل ته: چې د څه شيز عبادت کوئ تاسې (يعني دغه څه شی دی چې تاسي يې عبادت کوئ؟) نو وويل دوی: عبادت کوو د بُتانو پس همېشه اوسو دوی ته ورنژدې کېناستونکي (عابدان).

تفسير: يعني دغه څه شی دی چې تاسې يې عبادت کوئ؟ دغه د ابراهيم عليه السلام سوال وو، نمروديانو په ځواب کې ورته داسې وويل چې: ته ځمونږ معبودان نه پېژنې؟ چې په داسې تحقير سره يې پوښتنه کوې، مونږ تل د دغو بتانو عبادت کوو، او ځمونږ په زړونو کې د دوی دومره عقيدت او وقعت شته، چې د شپې او د ورځې دوی ته د مجاورانو په شان معتکف ناست يو.

قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ ﴿٧٢﴾

وويل (ابراهيم) آيا اوري (دغه بُتان بلنه) د تاسې کله چې يې بولئ تاسې؟.

تفسير: يعني سره له دومره نارو او سورو وهلو آيا دوی ستاسې خبرې اورېدلی شي؟ که يې نه اوري، لکه چې د دوی له جماديت څخه ښکاره ده؛ نو دغه بلل او نارې وهل چټې (فضول) او بېکاره دي.

أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ﴿٧٣﴾

يا څه نفعه رسوي تاسې ته (چې يې عبادت وکړئ) يا ضرر در رسوي (که يې عبادت ونه کړئ).

تفسير: آيا د دوی د عبادت کولو څخه څه ګټه (فائده) او د نه عبادت کولو څخه څه نقصان دررسولی شي؟ ظاهره او ښکاره خبره ده چې له خپله ځانه يو مچ هم نشي شړلی، هغه به نورو ته څه نفع يا نقصان ورسولی شي، نو بيا داسې يو عاجز جماد شی معبود ګرځول د کوم عاقل او پوه کار کېدی شي؟.

قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ﴿٧٤﴾

وويل (کفّارو چې نه اوري او نه نفع او نه ضرر رارسوي دغه بُتان) بلکه موندلي دي مونږ پلرونه خپل چې همداسې به يې کول (عبادت د بُتانو).

تفسير: يعني له داسې منطقي مباحثو او حجّتونو او دلائلو سره مونږ څه کار او غرض نه لرو، ځمونږ د عقيدت او عبادت مدار پر هم دغو خبرو دی چې درته ومو ويل، پس له سلهاوو دلائلو څخه يو لوی دليل همدغه خبره ده چې

ځمونږ پلرونه او نیکه ګان به هم پر همدغې لارې روان وو، آیا مونږ هغو ګردو ته احمق او ناپوه ووایو؟ او د هغوی تقلید پر بږدو؟.

قَالَ أَفَرَءَيْتُم مَّا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ﴿٧٥﴾ أَنتُمْ وَءَابَآؤُكُمُ ٱلْأَقْدَمُونَ ﴿٧٦﴾ فَإِنَّهُمْ عَدُوٌّ لِّىٓ إِلَّا رَبَّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٧٧﴾
ٱلَّذِى خَلَقَنِى فَهُوَ يَهْدِينِ ﴿٧٨﴾ وَٱلَّذِى هُوَ يُطْعِمُنِى وَيَسْقِينِ ﴿٧٩﴾ وَإِذَا مَرِضْتُ فَهُوَ يَشْفِينِ ﴿٨٠﴾
وَٱلَّذِى يُمِيتُنِى ثُمَّ يُحْيِينِ ﴿٨١﴾ وَٱلَّذِىٓ أَطْمَعُ أَن يَغْفِرَ لِى خَطِيٓـَٔتِى يَوْمَ ٱلدِّينِ ﴿٨٢﴾

وویل (ابراهیم) آیا پس وینئ (پوهېږئ تاسې په دې چې) هر هغه (بُتان) چې یئ تاسې چې عبادت کوئ. تاسې (د هغوی) او پلرونه ستاسې چې پخوا تېر شوي دي. پس بېشکه چې دغه (بُتان) دښمنان ځما دي، مګر رب د عالمیانو (چې دوست یې لرم، او عبادت یې کوم). هغه (رب) چې پیدا کړی یې یم زه (له عدمه)، پس همدی سمه صافه لاره ښیي ماته. او هغه (رب) چې همدی طعام خوري پر ما، او اوبه (او نور) راباندې څښوي. او کله چې مریض رنځور شم؛ پس همدی شفاء راکوي. او هغه (رب) چې مړ کوي مې (په دنیا کې) بیا به مې ژوندی کوي (په عُقبا کې). او هغه (رب) چې طمع هیله (امید) لرم (ترې) د دې چې وبخښي ماته خطا ځما په ورځې د جزا کې.

**تفسیر:** مفسرین وایې چې پدی کې په یو نهایتي مؤثره طریقې سره پر مشرکینو تعرض دي یعنې هغه بوتان چې تاسې یې عبادت کوي زه خپل دشمنان ګڼم، او یواځې یو واحد او صمد اله العالمین سره مینه لرم، او هم د هغه عبادت کوم چې هغه زه پیدا کړی یم او د دارینو کامیابی راښایي او خوړل، څښل، ژوند کول، وژل، او رنځورول او له رنځورۍ څخه روغول د هغه په لاس کې دي، نو د داسې ذات عبادت په کار دي نه د هغه چا چې د هیڅ شي اختیار نلري.

رَبِّ هَبْ لِى حُكْمًا وَأَلْحِقْنِى بِٱلصَّٰلِحِينَ ﴿٨٣﴾ وَٱجْعَل لِّى لِسَانَ صِدْقٍ فِى ٱلْءَاخِرِينَ ﴿٨٤﴾ وَٱجْعَلْنِى مِن
وَرَثَةِ جَنَّةِ ٱلنَّعِيمِ ﴿٨٥﴾ وَٱغْفِرْ لِأَبِىٓ إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٨٦﴾

ای ربه ځما ! وبخښه ما ته حکم (علم، عمل، حکمت، نبوّت) او پیوست مې کړه له (لویو) صالحانو سره. او وګرځوه ماته ژبه د صدق (او د ثناء، او د نېکنامی آوازه) په وروستنیو (خلقو کې هم). او ومې ګرځوه له وارثانو د جنّت د نعمتونو (یعنې چې ډک دي له خالصو لویو لویو نعمتونو نه). او بخښنه وکړه پلار ځما ته ! بېشکه چې دی وو له ګمراهانو.

**تفسیر:** یعني مزید علم او حکمت او د قرب درجات او قبول را مرحمت وفرمایـه ! او د اعلی درجـې نېکانو په ډله کې مې چې انبیاء علیهم السلام دي؛ شامل کړه !، کما قال نبینا صلی الله علیه وسلم: «اللهم في الرفیق الأعلی»، له دغه دعاء څخه خپل کامل احتیاج او د الله تعالی د انتهایي غناء اظهار مقصود دی، یعنې که نبي دی یا ولي؛ الله تعالی د هیچا په معامله کې مجبور او مضطر نه دی، او تل د هغه د فضل او رحمت او کرم څخه کار چلیږي.

﴿وَٱجْعَل لِّى لِسَانَ صِدْقٍ فِى ٱلْءَاخِرِينَ﴾ «او وګرځوه ماته ژبه د صدق او د ثناء او د نېکنامی آوازه په وروستنیو خلقو کې هم»، یعنې د داسې مرضیه وو اعمالو او حسنه وو آثارو توفیق راپه برخه کړې چې راتلونکي نسلونه تل ما په خیر سره یاد کړي !، او تل ځما د سنّت متابعت وکړي !، او ماته راغب وي، او داسې هم کېدی شي چې په آخره زمانه کې دې ځما له کورنۍ څخه داسې نبي وي چې ځما دین تازه وګرځوي، او ویې ساتي، لکه چې همداسې هم وشوه، چې الله تعالی په دنیا کې ابراهیم علیه السلام ته عمومي قبول وروبانبه، او د ده له اولادې څخه یې ځمونږ خاتم المرسلین سید

الأولين والآخرين صلى الله عليه وسلم مبعوث کړ، چې دوی د ابراهيم ملّت تجديد وفرمايه، او ويي فرمايل چې: زه د ابراهيم دعاء يم، نن هم د ابراهيم عليه السلام د خبر ذکر د اهل الملل پر ژبو جاري دی، او مونږ محمدي امّت هم په هر لمانځه کې: «اللهم صل وسلم وبارك على محمد وعلى آل محمد كما صلّيت وسلمت وباركت على إبراهيم وعلى آل إبراهيم» لولو.

﴿وَاغْفِرْ لِأَبِيٓ﴾ «او بخښنه وکړه پلار څما ته، بېشکه چې دی وو له ګمراهانو»، له ترجمې څخه څرګندیږي (ښکاره کیږي) چې کله د ده عدوّ الله توب ظاهر شو، نو خپل د براءت او بېزارئ اظهار يې وفرمايه، كما قال الله تعالى: ﴿وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ﴾ (جزء ۱۱، د التوبه سورت (۱۴) رکوع، (۱۱۴) آيت)، او که په ﴿إِنَّهُ كَانَ مِنَ الضَّآلِّينَ﴾ کې د «کان» ترجمه د «وو» پر ځای په «دی» سره وکړه شي؛ نو بیا هیڅ اشکال نه پاتې کیږي، ځکه چې په ژوندون کې د ده د ایمان راوړلو امکان باقي وو، نو د دعاء حاصل دا دی چې: «الهي ځما پلار په ایمان سره مشرف وفرمايه ! او د کفر د زماني خطاوې يې ورمعافي کړه !»، د دې لږ مقصد تحقیق پخوا له دې نه کوم ځای کې تېر شوی دی، هلته دې وکتل شي !.

﴿وَلَا تُخْزِنِي يَوْمَ يُبْعَثُونَ ﴿٨٧﴾ يَوْمَ لَا يَنفَعُ مَالٌ وَلَا بَنُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا مَنْ أَتَى اللَّهَ بِقَلْبٍ سَلِيمٍ ﴿٨٩﴾﴾

او مه مې شرموه په هغه ورځ کې چې ژوندي راپاڅولی شي (ټول مخلوقات له قبورو). په هغه ورځ چې نه رسوي نفع مال او نه (نفع رسوي) ځامن هيڅا ته. مګر هغه چا ته چې راغلی دی الله ته په زړه سلامت پاک (له کفره او نفاقه). يعني روغ رمټ له رنځه او درده (زړه چې له کفر او نفاقه او فاسدو عقائدو څخه پاک وي؛ هغه هم هغسې کار کوي؛ چې د هغه په اثر په قيامت کې معزّز اوسيږي).

تفسير: هلته به مال او دولت او عيال او اولاد له سره په کار نه راځي، که کافر وغواړي چې په قيامت کې خپل مال او اولاد فديه کړي، او له خپله ځانه يې جار (قربان) کړي، او په دغه وسيله سره خپل ځان خلاص کړي؛ نو دغه به له سره ممکن نه وي، د دغې دنيا د صدقاتو او خيراتونو او نېکو اولادونو څخه هم هلته د نفع توقّع شته، چې د ده زړه د کفر له نجاسته او پليتئ څخه پاک او صاف وي.

﴿وَأُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٩٠﴾ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ لِلْغَاوِينَ ﴿٩١﴾﴾

او (په هغه ورځ کې به) ورنژدې کړ شي جنّت پرهېزګارانو ته (لپاره د مسرّت او خوشالي د دوی). او ښکاره به کړ شي جحيم ګمراهانو ته (لپاره د حسرت او خفګان د دوی).

تفسير: په محشر کې به جنّت پخپل انتهايي ډول او سينګار او آرايش او زيبايش سره متقيانو ته نژدې په نظر ورځي، چې جنتيان به د هغه له ليدلو څخه پخوا د هغه د ننوتلو څخه ډېر مسرور او محظوظ کيږي، همداسې دوزخ به هم مجرمانو ته ډېر نژدې راوړل کيږي، څو دوی پخوا د هغه له دخوله وويريږي، او ولړزيږي.

﴿وَقِيلَ لَهُمْ أَيْنَمَا كُنتُمْ تَعْبُدُونَ ﴿٩٢﴾ مِن دُونِ اللَّهِ هَلْ يَنصُرُونَكُمْ أَوْ يَنتَصِرُونَ ﴿٩٣﴾﴾

او وبه ويل شي دوی ته (د پرښتو په ژبه) چې چېرته دي هغه معبودان ستاسې بې له الله چې وئ عبادت به کاوه تاسې د هغو بې له الله نه. آيا مدد کوي له تاسې سره (په دفع د عذاب د الله کې)؟ يا څه مدد کوي دوی له خپله ځانه سره؟ (بلکه نه يې شي کولی).

**تفسير:** يعنې اوس مو هغه فرضي معبودان چېرې دي؟ چې نه ستاسې مدد کوي، او نه مو له دغه عذابه خلاصولی شي؟ او نه ستاسې بدل او انتقام اخیستی شي؟ بلکه دوی خپلو ځانونو ته هم څه مدد او منفعت نشي رسولی.

فَكُبْكِبُوا فِيهَا هُمْ وَالْغَاوُنَ ﴿٩٤﴾ وَجُنُودُ إِبْلِيسَ أَجْمَعُونَ ﴿٩٥﴾ قَالُوا وَهُمْ فِيهَا يَخْتَصِمُونَ ﴿٩٦﴾ تَاللَّهِ إِن كُنَّا
لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٩٧﴾ إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٩٨﴾ وَمَا أَضَلَّنَا إِلَّا الْمُجْرِمُونَ ﴿٩٩﴾ فَمَا لَنَا مِن شَافِعِينَ ﴿١٠٠﴾ وَلَا
صَدِيقٍ حَمِيمٍ ﴿١٠١﴾

پس وبه غورځول شي (دا بُتان) نسکور په دغه (دوزخ) کې، دوی (او هم) ګمراهان. او لښکر د ابلیس (شیطان) ټول (عابدان او معبودان). وبه وايي دوی حال دا چې دوی به په دوزخ کې سره جګړې کوي. چې قسم دی په الله چې بېشکه شان دا دی چې وو مونږ په ګمراهی ښکاره کې. کله چې برابرولئ مونږ تاسې (په عبادت کې) له رب (پالونکي) د عالمیانو سره. او نه وو ګمراه کړي مونږ مګر همدغو مجرمانو (بدو مشرانو ځمونږ). پس نشته مونږ ته له سره له شفاعتګرو (هیڅوک). او نه کوم دوست مخلص (چې ځمونږ په دغه غم غمجن شي).

**تفسير:** يعنې بُتان او بُت پرستان او ابلیس سره د هغو د لښکرو ګردو پرمخې په دوزخ کې غورځول کېږي، وروسته د دې ځای د رسېدلو څخه دوی پخپلو منځونو کې سره جګړې کوي، او یو پر بل باندې به الزام او ملامتې اړوي، او بالآخر ګرد به پر خپلو ګمراهیو اقرار او اعتراف کوي، او وبه وايي چې: «بېشکه له مونږ څخه ډېره لویه ګناه او غلطي شوې ده، چې تاسې بُتانو یا نورو شیانو ته مو د عبودیت حقوق او اختیارات درکړي وو، او له رب العالمین سره مو برابر کړي وئ، اوس مونږ دومره یو یار یا مددګار هم نه لرو چې د الله تعالی په دربار کې ځمونږ شفاعت وکړي، یا د دغه غم او مصیبت په وخت کې له مونږ سره لږ زړه سوی او خواخوږي او د همدردۍ اظهار وکړي».

ښتیا ده چې ﴿الْأَخِلَّاءُ يَوْمَئِذٍ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ إِلَّا الْمُتَّقِينَ﴾ (د الزخرف سورت (۶) رکوع، (۶۷) آیت (۲۵) جزء).

فَلَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٢﴾

پس (کاشکې) که وي مونږ ته یو کرت (بېرته ورتګ دنیا ته) پس شوي به وو مونږ له مؤمنانو.

**تفسير:** يعنې که یو ځلې مونږ ته داسې موقع راکړه شي، چې بېرته دنیا ته ورشو؛ نو دا ځلي به مونږ له ډېرو کلکو او مضبوطو ایماندارو څخه کېږو، لیکن د دوی دغه وینا به هم دروغ وي: ﴿وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾ (۷ جزء، د الأنعام سورت (۲۸) آیت (۳) رکوع).

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾

بېشکه چې په دغه (قصه د ابراهیم کې) خامخا لوی حجّت (نښه د قُدرت او عبرت) دی (عقلاوو ته)، او نه وو اکثره زیاتره د دوی مؤمنان.

**تفسير:** يعنې په دغه قصه د ابراهیم علیه السلام کې د توحید او د نورو حسنه وو خصائلو دلائل او د مشرکانو عبرتناکه انجام او خاتمه ښوولې شوې ده، مګر له الله نه منکر خلق یې کله مني.

وَاِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۰۴﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ نُوْحِ ِالْمُرْسَلِيْنَ ﴿۱۰۵﴾ اِذْ قَالَ لَهُمْ اَخُوْهُمْ نُوْحٌ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۱۰۶﴾ اِنِّيْ
لَكُمْ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ ﴿۱۰۷﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿۱۰۸﴾

او بېشکه رب ستا هم هغه غالب قوي دي (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی دی. نسبت د دروغو وکړ قوم د نوح رسولانو ته. کله چې وویل دوی ته (قومي) ورور د دوی نوح چې: آیا نه ویرېږئ تاسې (له عذابه د الله نه په شرک خپل)؟. بېشکه چې زه تاسې ته رسول یم امانتګر. پس وویرېږئ تاسې له الله نه او اطاعت وکړئ ځما (په شرعیه وو امورو کې).

تفسیر: یعنې په نهایت صدق او امانت د الله تعالی پیغام بې له تزییده او تنقیصه دررسوم، لهذا پر تاسې واجب دي چې دغه د الله تعالی پیغام په ښه شان سره واورئ ! او د الله تعالی له عذابه څخه وویرېږئ.

وَمَآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ اَجْرٍ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلٰى رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۰۹﴾ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوْنِ ﴿۱۱۰﴾ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ لَكَ
وَاتَّبَعَكَ الْاَرْذَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾

او نه غواړم زه له تاسې نه په دغه تبلیغ باندې هیڅ اجر (عوض ـ بدل). نه دی اجر ځما مګر په رب (پالونکي) د عالمیانو دی. پس وویرېږئ تاسې له الله (په ځان ساتلو له معاصیو) نه، او اطاعت وکړئ تاسې ځما (په شرعي امورو کې ـ یعنې د بې غرضه او بې لوثه سړي خبرې لازمه ده چې ومنل شي !). نو وویل (کفّارو): آیا ایمان راوړو په تا (ای نوحه) حال دا چې متابعت کړی دی ستا رذیلانو، خوارانو (په ایمان راوړو په تا).

تفسیر: یعنې لږ څه ښکته خواران او غریبان خلق د خپلو ځانونو د ښوونې لپاره له تا سره یو ځای شوي دي، کله چې ستا اتباع داسې خلق نه دي، چې په لوړو (اوچتو) کارونو کې لاس ووهي؛ نو له سره له دوی څخه کوم لوی کار هم نه څرګندېږي (ښکاره کیږي). او ځمونږ فضل او شرف له سره مونږ ته اجازه نشي راکولی چې له دغو ښکتو خلقو سره کینو، یا له دوی سره څنګ په څنګ چېرې لاړ شو، ړومبی خو تاسې دوی له خپله مجلسه لرې کړئ !، بیا نو له مونږ سره خبرې وکړئ !.

قَالَ وَمَا عِلْمِيْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ اِنْ حِسَابُهُمْ اِلَّا عَلٰى رَبِّيْ لَوْ تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۴﴾

وویل (نوح) او نشته علم ځما په هغه څه چې دي دوی چې یې کوي. نه دی حساب د دوی مګر پر رب (پالونکي) ځما دی که تاسو پوهېږئ. او نه یم زه شړونکی د مؤمنانو (له خپل مجلسه).

تفسیر: یعنې د دوی صدق او ایمان ځما قبول دی، د دوی د چارو یا د دندو یا نیاتو او کورنیو او شخصي مشروعو کارونو سره ځما څه کار او غرض دی، د دغو کارونو فیصله حساب او کتاب به پخپله الله تعالی کوي، باقي زه ستاسې له خاطره غریب او ناداره ایمانداران له خپله ځانه نشم لرې کولی.

اِنْ اَنَا اِلَّا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۱۵﴾

نه یم زه مګر ویروونکی ښکاره (یم کفّارو ته له جحیم نه).

تفسیر: یعنې ځما فریضه دا ده چې تاسې خبردار کړم، او دغه وظیفه مې اداء کړې ده، ستاسې د دغو چټي (بېکاره) او لغو غوښتنو پوره کول ځما په ذمه او غاړه نه دي.

قَالُوا۟ لَئِن لَّمْ تَنتَهِ يَٰنُوحُ لَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلْمَرْجُومِينَ ﴿۱۱۶﴾

وويل (كفارو) چې خامخا كه وانه وښتې (له دغو ويناوو څخه) اى نوحه؛ خامخا شې به ته هرومرو له ويشتل شويو (په تيږو ـ ګټو، يا په ښكنځلو).

تفسير: يعني بس كړه او وروسته له دې نه پخپلو دغو پندونو او نصائحو څمونږ غوږونه مه كڼوه !، كه ته خپل له دغه وضعيت څخه لاس نه اخلې؛ نو خبردار اوسه چې څمونږ له لوري به په ګټو سره ويشتل كيږې.

قَالَ رَبِّ إِنَّ قَوْمِى كَذَّبُونِ ﴿۱۱۷﴾ فَٱفْتَحْ بَيْنِى وَبَيْنَهُمْ فَتْحًا وَنَجِّنِى وَمَن مَّعِىَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۱۸﴾
فَأَنجَيْنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ فِى ٱلْفُلْكِ ٱلْمَشْحُونِ ﴿۱۱۹﴾ ثُمَّ أَغْرَقْنَا بَعْدُ ٱلْبَاقِينَ ﴿۱۲۰﴾ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَءَايَةً ۖ وَمَا كَانَ
أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۱۲۱﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿۱۲۲﴾

وويل (نوح) اى رب څما ! بېشكه چې قوم څما دروغجن وبللم زه. پس حكم فيصله وفرمايه په منځ څما او د دوى كې په يو ډول حكم (او فيصله سره) او نجات راكړه ماته او هغه چا ته چې له ما سره دي له مؤمنانو (د منكرانو له شامته). پس نجات وركړو مونږ دغه (نوح) او هر هغه ته چې له دغه (نوح) سره وو په (هغې) بېړۍ كې چې ډكه وه (له ذوي الأرواحو څخه). بيا غرق كړ مونږ وروسته له (نجاته د بېړۍ د نوح) نور (قوم د نوح). بېشكه په دغه (صبر او غرق كې) خامخا لويه نښه ده (د قدرت او عبرت)، او نه وو زياتره د دوى مؤمنان. او بېشكه رب ستا خامخا هم دى ښه غالب قوي دى (په انفاذ د احكامو) ډېر رحم كوونكى دى.

تفسير: د دغې قصې تفصيل پخوا له دې نه په څو ځايونو كې تېر شوى دى، لنډه يې دا چې نوح عليه السلام وويل: اى ربه څما ! بېشكه چې قوم څما دروغجن وبللم زه، پس حكم او فيصله وكړه په منځ څما او د دوى كې په يوه ډول حكم او فيصلې سره، يعنې څما او د دوى په منځ كې عملي فيصله وفرمايه، اوس زه هيڅ هيله (اميد) او توقع نه لرم چې ګوندې دوى په سمه لاره راشي، او څما خبره به ومني، نو نجات او ژغورنه (خلاصى) راكړه ماته او هغه چاته چې له ما سره دي له مؤمنانو !.

كَذَّبَتْ عَادٌ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿۱۲۳﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ هُودٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿۱۲۴﴾ إِنِّى لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿۱۲۵﴾ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ
وَأَطِيعُونِ ﴿۱۲۶﴾ وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِىَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿۱۲۷﴾ أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ ءَايَةً
تَعْبَثُونَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ ﴿۱۲۹﴾

نسبت د دروغو كړى وو عاديانو رسولانو ته. كله چې وويل دوى ته (قومي) ورور د دوى هود چې: آيا نه ويرېږئ تاسې (له عذابه د الله په شرك خپل؟). بېشكه زه يم تاسې ته رسول امانتګر. نو وويرېږئ تاسې له الله (په ځان ساتلو له معاصيو). او اطاعت وكړئ تاسې څما (په شرعي امورو كې). او نه غواړم زه له تاسې نه پر دغه (تبليغ) هيڅ اجر (بدل، عوض)، نه دى اجر څما مګر پر رب (پالونكي) د عالميانو دى. آيا جوړوئ تاسې پر هر هسك (اوچت) ځاى (لويه لاره) نښه هسكه (اوچته) (چې په كې كښېنئ او) عبثيات كوئ (او ملنډې وهئ پر عابرينو؟). او جوړوئ (پاخه او كلك) مصنوعات ښايي چې تاسې به تل اوسېږئ (په دنيا كې؟).

تفسیر: دغه خلق د دې خبرې ډېر شوقیان وو، چې ډېرې هسکې (اوچتې) منارې «څلې» جوړ کړي، که له هغه څنې بله څه ګټه او فائده په لاس ورنشي خو تش نوم به يې کيږي، او د خپلې هستوګنې ماڼۍ به يې هم مکلفې کلکې او مضبوطې جوړولې، او خامخا به يې خپل اموال پرې ضايع کول، او د هغه په هره برخه او څانګه کې به يې لوی مهارت او کاريګري څرګندوله (ښکاره کوله)، ګواکې دوی به داسې ګڼل چې دغه ماڼۍ او دغه يادګارونه او يادونې به تل ترتله همېشه باقي پاتې وي، او له سره به نه ورانيږي، ليکن نن وګورئ چې د دنيا په مخ کې د هغو نوم او نښه هم نه ده پاتې.

وَإِذَا بَطَشْتُم بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ ﴿۱۳۰﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۱۳۱﴾

او کله چې لاس اچوئ تاسې چاته؛ منګلې لګوئ په جبر (او ظلم سره). نو وويرېږئ تاسې له الله (په ځان ساتلو له معاصيو) نه او اطاعت وکړئ تاسې ځما (په شرعي امورو کې).

تفسیر: يعنې تاسې پخپل ظلم، ستم او تيري سره تر لاس لاندې کمزوران مه تنګ او خفه کوئ، ګواکې د انصاف، نرمۍ، پستوالي او ملاطفت لوست مو له سره نه دی لوستی چې دالله تعالى ضعيف مخلوق مو د ظلم او جبر او تعدّي مورد ګرځولی دی، راشئ ! له الله تعالى څخه وويرېږئ !، او له ظلم تکبر او لويي څخه لاس واخلئ !، او ځما دغه خبره ومنئ !.

وَاتَّقُوا الَّذِي أَمَدَّكُم بِمَا تَعْلَمُونَ ﴿۱۳۲﴾ أَمَدَّكُم بِأَنْعَامٍ وَبَنِينَ ﴿۱۳۳﴾ وَجَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ﴿۱۳۴﴾ إِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿۱۳۵﴾

او وويرېږئ تاسې له هغه (الله) چې احسان مددګاري يې کړې ده له تاسې سره په هغه شيز چې پوهيږئ پرې. مددګاري احسان يې فرمايلی دی پر تاسې په (اعطاء د) مواشيو او ځامنو او باغونو او چينو. بېشکه چې ويرېږم زه پر تاسې له عذابه د ورځې ډېرې لويې (د قيامت چې ډېر لوی دی عذاب يې که مخالفت وکړئ تاسې له مانه په شرعي امورو کې).

تفسیر: يعنې تاسې خو دغومره فکر وکړئ او خپل عقل وچلوئ ! چې بالآخر دغه سازمان وسائل تاسې ته چا درکړي دي؟ آيا د هغه حقيقي منعم څه حق ستاسې په غاړه شته؟ که نه؟ که تاسې پخپلو دغو شرارتونو او سرکښيو کې دوام وکړئ؛ نو زه انديښنه کوم او وېرېږم چې تاسې هم د پخوانيو اقوامو په شان په کوم سخت عذاب او آفت کې اخته او لتاړ (برباد) نه شئ ! وګورئ ما خو تاسې ته پوره پند او نصيحت درکړی دی، اوس تاسې خپلې آخرې خاتمې او انجام ته په ښه فکر او غور سره وګورئ !.

قَالُوا سَوَاءٌ عَلَيْنَا أَوَعَظْتَ أَمْ لَمْ تَكُن مِّنَ الْوَاعِظِينَ ﴿۱۳۶﴾ إِنْ هَٰذَا إِلَّا خُلُقُ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۳۷﴾ وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِينَ ﴿۱۳۸﴾

وويل (عاديانو هود ته) برابره (خبره) ده پر مونږ باندې، آيا پند راکړې (ته مونږ ته) يا که نه يې ته له پند راکوونکيو. نه دی دغه (موت او حيات يا وعظ او نصيحت د تا) مګر عادت خوی د پخوانيو (خلقو)، او نه يو مونږه چې په عذاب به کړی شو (په دغو چارو خپلو).

تفسیر: يعنې ستا پند او نصيحت بيکاره دي مونږ په دغو خبرو نه متأثره کيږو او په هم هغه دود او طريقه چې زمونږ پلرونه او نيکه ګان تللي دي مونږ هم ځو او د عذاب د ويرولو څخه مونږ نه ويريږو.

فَكَذَّبُوهُ فَأَهْلَكْنَٰهُمْ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَءَايَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۱۳۹﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿۱۴۰﴾

پس تکذیب وکړ (عادیانو) د دغه (هود په دغه عذاب)، پس هلاک کړل مونږ دغو (عادیانو) لره، بېشکه په دغه (اهلاک د عادیانو کې) خامخا لویه نښه (د قدرت او د عبرت) ده، او نه وو زیاتره د دوی مؤمنان. او بېشکه رب ستا خامخا همدی ښه غالب قوي دی (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: پس هلاک کړل مونږ دغه عادیان، یعني سخته سیلۍ او شدید باد یې ورولېږه، دغه قصه پخوا له دې نه د «الأعراف» په سورت او نورو ځایونو کې هم مفصّله تېره شوې ده.

كَذَّبَتْ ثَمُودُ ٱلْمُرْسَلِينَ ﴿۱۴۱﴾ إِذْ قَالَ لَهُمْ أَخُوهُمْ صَٰلِحٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿۱۴۲﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿۱۴۳﴾ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۱۴۴﴾ وَمَآ أَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿۱۴۵﴾ أَتُتْرَكُونَ فِي مَا هَٰهُنَآ ءَامِنِينَ ﴿۱۴۶﴾ فِي جَنَّٰتٍ وَعُيُونٍ ﴿۱۴۷﴾ وَزُرُوعٍ وَنَخْلٍ طَلْعُهَا هَضِيمٌ ﴿۱۴۸﴾ وَتَنْحِتُونَ مِنَ ٱلْجِبَالِ بُيُوتًا فَٰرِهِينَ ﴿۱۴۹﴾ فَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿۱۵۰﴾

نسبت د دروغو کړی وو ثمودیانو رسولانو ته. کله چې وویل دوی ته (قومي) ورور د دوی صالح چې آیا نه ویرېږئ تاسې (له عذاب د الله په شرک خپل؟). بېشکه زه تاسې ته رسول یم امانتګر. نو وویرېږئ تاسې له الله نه (په ځان ساتلو له معاصیو) او اطاعت وکړئ ځما (په شرعي امورو کې). او نه غواړم زه له تاسې څخه پر دغه (تبلیغ) هیڅ اجر (بدل عوض). او نه دی اجر ځما مګر پر رب (پالونکي) د عالمیانو دی. آیا پرې به ښودل شوئ تاسې (بلکه پرې به نښودل شئ) په هغو (نعمتونو) کې (چې په دې دنیا کې تاسې ته حاصل دي) په امان (له آفاتو). په باغونو کې، او (په) چینو (کې). او په کښتونو (فصلونو) (کې). او (په) خرماګانو چې مېوه (وږې ـ شګوفه) د هغو لطیفه پسته وي. او کینئ (جوړوئ) تاسې له غرونو څخه (په غرونو کې) کورونه په دغه حال کې چې ماهران یئ په دغه مکلف تو ږلو سره. نو وویرېږئ تاسې له الله (په ځان ساتلو له معاصیو) او اطاعت وکړئ تاسې ځما (په شرعي امورو کې).

تفسیر: یعني آیا څه خیال لرئ چې تل به په همدغه عیش، عشرت، باغ، بهار، آرامی او هوسایی (راحت) کې خوندونه او مزې کوئ؟ او غرونه به توږئ، او د هغو په مکلفو او ټینګو او مأمونو او مصئونو کورونو به کینئ؟ او له سره به له هغو څخه نه وځئ؟ یا دغه کلکي مضبوطي او ساتلي خوني (کورونه) به تاسې د الله تعالی د عذابه نجات درکړي؟، دغه چټي (بېکاره) اندېښنه له خپلو ماغزو څخه وباسئ!، او له الله تعالی څخه وویرېږئ؟ او ځما خبره ومنئ!، چې زه ستاسې د ښېګڼې (فائدې) او نېکۍ لپاره خبرې کوم.

وَلَا تُطِيعُوٓا۟ أَمْرَ ٱلْمُسْرِفِينَ ﴿۱۵۱﴾ ٱلَّذِينَ يُفْسِدُونَ فِي ٱلْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿۱۵۲﴾

او مه منئ تاسې امر (حکم خبره) د اسراف کوونکیو (له حده تېرېدونکیو کفّارو). هغه مسرفان چې فساد کوي دوی په ځمکه (د حجر کې په ظلم او کفر سره)، او نه کوي اصلاح (د کار خپل چې عبادت وکړي او له فساده ځان وساتي).

تفسیر: دغه يې عوامو ته فرمايلي دي چې تاسې په دغو لويو مفسدانو پسې مه ځئ !، او خامخا خپل ځانونه مه تباه کوئ !، ځکه چې هغوی خو په ځمکه کې د خرابۍ خوروونکي دي، اصلاح کوونکي او نېک صلاح ورکوونکي سړي نه دي.

قَالُوٓا۟ إِنَّمَآ أَنتَ مِنَ ٱلْمُسَحَّرِينَ ﴿١٥٣﴾ مَآ أَنتَ إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا فَأْتِ بِـَٔايَةٍ إِن كُنتَ مِنَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿١٥٤﴾

نو وويل (ثموديانو) بېشکه همدا خبره ده چې ته له هغو (کسانو څخه يې چې) سحر پرې کړل شوی وي (او له ډېره سحره مغلوب العقل ګرځېدلی وي) نه يې ته مګر يو بشر (انسان) يې په شان ځمونږ (که ته اصرار لرې په رسالت خپل) نو راوړه څه معجزه که يې ته له صادقانو رښتينو (په دغې دعوی کې).

تفسیر: يعني له مونږ ځنې کومه يوه خبره په تا کې زياته شته، چې ته په مونږ کې نبي ګرځېدلی يې، معلومېږي چې پر تا باندې چا جادو او کوډې کړي دي، چې د هغو په اثر ستا عقل زايل او بې هوشه شوی يې، (العياذ بالله) ته نه يې مګر يو سړی يې ځمونږ په شان، نو څه سبب دی چې ته پيغمبر شوې او مونږ نه شو؟ او که په دغه دعوی کلک ولاړ يې او په رښتيا سره ته نبي يې، او له مونږ ځنې ته ممتازه درجه لرې؛ نو د الله تعالی له طرفه مونږ ته داسې يوه معجزه راوښيه، چې مونږ د هغې په ليدلو سره ستا نبوّت ومنو، بيا نو دوی داسې غوښتنه وکړه چې له دغه غره د دغې غټې تيږې (ګټې) څخه مونږ ته يوه اوښه راوباسه، چې پر دغسې او هغسې صفاتو مشتمله وي، صالح عليه السلام دعاء وفرمايله او الله تعالی په خپل کامل قدرت سره هغه د قدرت ننبه هغوی ته وروښودله.

قَالَ هَٰذِهِۦ نَاقَةٌ لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿١٥٥﴾ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوٓءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابُ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿١٥٦﴾

وويل (صالح) دا اوښه ده (معجزه د نبوّت ځما په غوښتنه د تاسې)، دې ته برخه (د اوبو) ده، او تاسې ته برخه (د اوبو) د ورځې معلومې ده. او مه رسوئ تاسې دې (اوښې) ته هيڅ ضرر (که نه) پس وبه نيسي تاسې لره عذاب د ورځې لويې (د قيامت چې لوی دی عذاب يې).

تفسیر: الله تعالی په خپل قدرت او د صالح عليه السلام په دعا سره له تيږې څخه اوښه پيدا کړه، او صالح عليه السلام د اوښې او د خپل قوم د څارويو په منځ کې داسې مقرره کړه، چې يوه ورځ دې دغه اوښه اوبو ته لاړه شي، او بله ورځ دې نور څاروي اوبو څښلو ته لاړ شي، او ورته يې وويل چې: لاس مه وروړئ تاسې دې اوښې ته په بدۍ سره؛ که نه عذاب به درباندې نازل شي.

فَعَقَرُوهَا فَأَصْبَحُوا۟ نَٰدِمِينَ ﴿١٥٧﴾ فَأَخَذَهُمُ ٱلْعَذَابُ إِنَّ فِى ذَٰلِكَ لَـَٔايَةً وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٥٨﴾
وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلرَّحِيمُ ﴿١٥٩﴾

پس زخمي کړه (ثموديانو) دغه اوښه، پس سبا ته وګرځېدل نادمان پښېمانه (په زخمي کولو د اوښې). پس ونيول دوی عذاب (نو هلاک شول)، بېشکه په دغه (ناقه او اهلاک د ثموديانو کې) خامخا لوی دليل (د قدرت او عبرت دی)، او نه وو زياتره د دوی مؤمنان. او بېشکه رب ستا خامخا هم دی دی ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی دی.

كَذَّبَتۡ قَوۡمُ لُوۡطِ ٱلۡمُرۡسَلِيۡنَ ﴿۱۶۰﴾ إِذۡ قَالَ لَهُمۡ أَخُوهُمۡ لُوطٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿۱۶۱﴾ إِنِّي لَكُمۡ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿۱۶۲﴾ فَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ
وَأَطِيعُونِ ﴿۱۶۳﴾ وَمَآ أَسۡـَٔلُكُمۡ عَلَيۡهِ مِنۡ أَجۡرٍۖ إِنۡ أَجۡرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿۱۶۴﴾ أَتَأۡتُونَ ٱلذُّكۡرَانَ مِنَ
ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿۱۶۵﴾ وَتَذَرُونَ مَا خَلَقَ لَكُمۡ رَبُّكُم مِّنۡ أَزۡوَٰجِكُمۚ بَلۡ أَنتُمۡ قَوۡمٌ عَادُونَ ﴿۱۶۶﴾

نسبت د دروغو کړې وو قوم د لوط رسولانو ته. کله چې وویل دوی ته ورور د دوی لوط: آیا نه ویرېږئ تاسې ( له عذابه د الله). بېشکه زه چې یم تاسې ته رسول یم امانتګر. نو وویرېږئ له الله (په ځان ساتلو له معاصیو) نه. او اطاعت وکړئ ځما (په شرعي امورو کې). او نه غواړم زه له تاسې څخه پر دغه (تبلیغ) باندې هیڅ اجر (بدل، عوض). نه دی اجر ځما مګر پر رب (پالونکي) د عالمیانو دی. آیا راتګ کوئ تاسې (په لواطت کولو) نارینه وو ته له خلقو. او پرېږدئ تاسې هغه چې پیدا کړي دي تاسې ته رب ستاسې له ښځو ستاسې، بلکه تاسې چې یئ یو قوم یئ له حده تیریدونکی (له حلاله حرامو ته).

تفسیر: یعنې په ټول جهان کې یواځې نارینه ستاسې د شهوت بهولو لپاره پاتې وو، یا په ټوله دنیا کې یواځې همدا تاسې پر دغه شنیع فعل مرتکب کېږئ، چې د دغه خلاف الفطرت فعل په کولو د انسانیت له حدودو هم د باندې وتلي یئ.

قَالُواْ لَئِن لَّمۡ تَنتَهِ يَٰلُوطُ لَتَكُونَنَّ مِنَ ٱلۡمُخۡرَجِينَ ﴿۱۶۷﴾

وویل (قوم د لوط) قسم دی خامخا که وانه وښتې (چپ نشوې له دغو خبرو څخه) ای لوطه ! نو خامخا شې به ته هرومرو له ایستل شویو (له دغه ښاره، یعنې وبه دې شړو له دې ځایه).

تفسیر: یعنې ای لوطه ! چپ شه ! او دومره وعظ پرېږده ! که ته پخپلو دغو غږېدلو سره خامخا مونږ په تنګوې؛ نو تا به له دغه کلي څخه د باندې وشړو.

قَالَ إِنِّي لِعَمَلِكُم مِّنَ ٱلۡقَالِينَ ﴿۱۶۸﴾

وویل (لوط) بېشکه زه له دې (بد) عمل ستاسې سره له بغض لرونکیو یم (او ترې بېزاره یم).

تفسیر: نو څکه خامخا به زه پر دغه د نفرت اظهار کوم، او له نصیحت او پند ورکولو څخه به له سره نه چپ کېږم، کله چې لوط علیه السلام له خپل قوم څخه مأیوس شو؛ نو داسې دعا یې وکړه:

رَبِّ نَجِّنِي وَأَهۡلِي مِمَّا يَعۡمَلُونَ ﴿۱۶۹﴾

ای ربه ځما ! نجات راکړه ماته او اهل ځما ته له (عذابه) د هغو کارونو چې دغه (قوم) یې کوي.

تفسیر: یعنې د دوی له نحوسته او وبال څخه مو وساته ! او دوی پر ته (علاوه) له مونږه تباه او غارت کړه.

فَنَجَّيۡنَٰهُ وَأَهۡلَهُۥٓ أَجۡمَعِينَ ﴿۱۷۰﴾ إِلَّا عَجُوزًا فِي ٱلۡغَٰبِرِينَ ﴿۱۷۱﴾

پس نجات ورکړو مونږ دغه (لوط) ته، او اهل د ده ټولو ته. مګر (نجات مو ورنه کړ) یوې بوډۍ ښځې ته چې په (جمله) د باقي پاتې کیدونکیو (په عذاب) کې وه.

تفسیر: دغه بوډۍ د ده ښځه وه، چې له دغو بدکارانو سره متحده او متفقه وه، نو کله چې د الله تعالی عذاب نازل شو؛ دا هم له هغو سره یو ځای هلاکه او تباه شوه.

ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ ﴿١٧٢﴾ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَسَاءَ مَطَرُ الْمُنذَرِينَ ﴿١٧٣﴾

بیا هلاک کړل مونږ هغه نور. او ومو وراوه پر دوی باران (د کاڼو)، پس بد باران د ویرول شویو (باران د دوی) وو.

تفسیر: یعنې د هغوی کلی له یوه پلوه (طرفه) پر بل مخ واوړول شو، او له اسمانه پرې کاڼي وووروول شول، چې بالآخر د یوې غونډۍ په شان واوښتل، د دوی مفصّله قصه هم په «الأعراف» او په نورو ځایونو کې لیکلې شوې ده.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٧٤﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٧٥﴾ كَذَّبَ أَصْحَابُ لْئَيْكَةِ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧٦﴾

بېشکه په دغه (اهلاک د قوم د لوط کې) خامخا لوی دلیل (د قدرت او عبرت) دی، او نه وو زیاتره د دوی مؤمنان. او بېشکه رب ستا خامخا هم دی ښه غالب دی (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی دی. نسبت د دروغو کړی وو صاحبانو د ځنګل (د ونو) رسولانو ته.

تفسیر: ابن کثیر (رحمه الله) لیکلي دي چې: «أصحاب الأیکه» هم هغه د مدین قوم دی، «أیکة» یوه ونه وه، چې دغو خلقو به د هغې ونې عبادت کاوه؛ نو په همدغه مناسبت دوی ته «أصحاب الأیکة» وایي، او د همدغه په سبب یې شعیب علیه السلام ته د دوی د ﴿أَخُوهُمْ﴾ سره تعبیر ونه فرمایه، ځکه چې د انبیاوو أخوت به محض پر قومي او نسبي تعلّقاتو مبني وو، که «مدین» یې فرمایلی وی؛ نو بیا د ﴿أَخُوهُمْ﴾ ویل موزون وو، «أصحاب الأیکة» یې فرمایلي، په یو مذهبي نسبت سره یې ذکر وکړو، نو په دغه حیثیت ﴿أَخُوهُمْ﴾ فرمایل د شُعیب علیه السلام له شانه سره مناسب نه وو، په هر حال «مدین» او «أصحاب الأیکة» یو قوم دی، او شُعیب علیه السلام د همدغه قوم په طرف مبعوث شوی دی، پخوا له دې نه هم د ده په متعلق څه بحث تېر شوی دی.

إِذْ قَالَ لَهُمْ شُعَيْبٌ أَلَا تَتَّقُونَ ﴿١٧٧﴾ إِنِّي لَكُمْ رَسُولٌ أَمِينٌ ﴿١٧٨﴾ فَاتَّقُوا اللَّهَ وَأَطِيعُونِ ﴿١٧٩﴾ وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿١٨٠﴾ أَوْفُوا الْكَيْلَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُخْسِرِينَ ﴿١٨١﴾ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ﴿١٨٢﴾

کله چې وویل دوی ته شُعیب چې آیا نه ویرېږئ (له عذابه د الله په شرک خپل). بېشکه زه چې یم تاسې ته رسول یم امانتګر. نو وویرېږئ تاسې له الله او اطاعت وکړئ ځما (په شرعي امورو کې). او نه غواړم زه له تاسې څخه پر دغه (تبلیغ) هیڅ اجر (بدل، عوض). نه دی اجر ځما مګر پر رب (پالونکي) د عالمیانو دی. پوره ورکوئ تاسې پیمانه (کله چې چاته غله پیمانه کوئ) او مه کېږئ له کمو ورکوونکیو (د پیمانې) نه. او تول کوئ تاسې په تله برابره سره (او هیڅ کمی په هیڅ شان شي کې مه کوئ !).

تفسیر: یعنې په معاملاتو کې خیانت او بې انصافي مه کوئ ! هم هغسې چې د اخیستلو په وخت کې یې پوره اخلئ، او په هم هغه شان سره یې تلئ او پیمانه کوئ، نو د ورکولو په وخت کې یې هم پوره تلئ او پیمانه کوئ !.

وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَآءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ ﴿۱۸۳﴾

او مه کموئ تاسي خلقو ته څيزونه د دوی (او په هيڅ څيز کې د دوی حقوق مه ستنوئ !ـ منع کوئ)، او مه ګرځئ تاسې په ځمکه کې په دغه حال کې چې فساد کوونکي اوسئ.

**تفسير:** يعني په ملک کې داړه مه اچوئ، او د خلقو حقوق مه تلف کوئ !.

وَاتَّقُوا الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالْجِبِلَّةَ الْأَوَّلِينَ ﴿۱۸۴﴾ قَالُوا إِنَّمَا أَنْتَ مِنَ الْمُسَحَّرِينَ ﴿۱۸۵﴾ وَمَا أَنْتَ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَإِنْ نَظُنُّكَ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ ﴿۱۸۶﴾

او وويرېږئ له هم هغه (الله) څخه چې پيدا کړي يې يئ تاسې، او خلق ړومبني. وويل (أصحاب الأيكه) بېشکه همدا خبره ده چې ته له سحر کړو شويو نه يې (چې له ډېره سحره دې عقل مغلوب شوی دی). او نه يې ته مګر يو بشر انسان په شان ځمونږ، او بېشکه شان دا دی چې مونږ ګمان کوو پر تا چې خامخا (ته يې) له (جمله) د دروغجنانو (په دغه دعوی خپله کې).

**تفسير:** يعنې د نبوّت په دعوی کې، او د عذابونو په انذار او نورو وعدو او وعيدو او خبرو کې.

فَأَسْقِطْ عَلَيْنَا كِسَفًا مِنَ السَّمَآءِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ ﴿۱۸۷﴾

پس راوغورځوه پر مونږ يوه ټوټه له اسمانه که يې ته له صادقانو رښتينو (په دغه دعوی خپله کې).

**تفسير:** يعنې که ته ای شُعيبه ! صادق او رښتين يې؛ نو د اسمان يا د وريځو کومه ټوټه ولې پر مونږ باندې نه غورځوې؟ او نه مو پرې وژنې؟.

قَالَ رَبِّي أَعْلَمُ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿۱۸۸﴾

وويل (شُعيب) رب ځما ښه عالم دی په هغو کارونو چې تاسې يې کوئ (نو جزاء به درکړي په هغو).

**تفسير:** يعنې دغه خبره خو يواځې الله ته ښه معلومه ده، چې پر کوم جرم باندې به په کوم وخت او څومره سزا ورکړی شي؟ د عذاب نزول ځما کار نه دی، ځما کار يواځې دعوت تبليغ او ويښول دي، چې دغه مې انجام ته رسولی دی.

فَكَذَّبُوهُ فَأَخَذَهُمْ عَذَابُ يَوْمِ الظُّلَّةِ إِنَّهُ كَانَ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ﴿۱۸۹﴾

پس نسبت د دروغو وکړ دغو (صاحبانو د ځنګل) هغه (شُعيب) ته، نو ونيول دوی عذاب د ورځې د سيورې، بېشکه چې دغه (عذاب) وه عذاب د ورځې ډېرې لويې (چې ډېر لوی دی عذاب يې).

**تفسير:** د سايوان په شان داسې وريځ راغله، چې له هغه څخه اور اوربده، د لاندې په ځمکه کې سخته زلزله شوه، او يو سخت ويروونکی غږ او کريکه هم پورته شوه، او په دې ترتيب ګرد قوم تباه شو، دغه قصه پخوا له دې نه هم مفصّله تېره شوې ده، هلته دې بيا په هغو تفاسيرو يو نظر وغورځاوه شي !.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً ۖ وَمَا كَانَ أَكْثَرُهُم مُّؤْمِنِينَ ﴿١٩٠﴾ وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿١٩١﴾ وَإِنَّهُ لَتَنزِيلُ رَبِّ
الْعَالَمِينَ ﴿١٩٢﴾ نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الْأَمِينُ ﴿١٩٣﴾ عَلَىٰ قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ ﴿١٩٤﴾

بېشکه چې په دغه (عذاب د صاحبانو د ځنګل) کې خامخا لوی دلیل (د قُدرت، او عبرت) دی، او نه وو اکثر د دوی مؤمنان. او بېشکه رب ستا خامخا هم دی دی ښه قوي غالب (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی دی. او بېشکه دغه (قرآن) خامخا نازل کړی شوی دی له (طرفه د) رب د عالمیانو (شعر سحر او باطلې قصې نه دي). نازل شوی دی په دغه قرآن سره روح امانتګر (یعنې راوړی دی دا قرآن جبریل الأمین). پر زړه ستا لپاره د دې چې شې ته له ویروونکیو (خلقو لره له عذابه د الله).

تفسیر: یعني لوی قرآنکریم هغه مبارک او عظیم الشأن کتاب دی، چې رب العالمین نازل کړی دی، او د جبریل أمین علیه السلام په وسیله ستا پر پاک او صاف زړه لېږلی شوی دی، همدغه پاک زړه وو چې د الله تعالی په علم کې د دغه دروند امانت د پورته کولو او ساتلو وړ (قابل) او لایق وو، لکه چې قرآني وحي راغله، او سم ستا په زړه کې قرآني خبرو ځای ونیو.

تا هغه ټولې د خپل زړه په غوږونو سره واورېدې، او پرې وپوهېدې، او محفوظې دې په کې وساتلې، ښایي چې د ﴿عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾ په لفظ کې دغه ته هم اشاره شوې وي، چې د وحي نزول داسې دوه کیفیتونه درلول (لرل) چې په صحیحه احادیثو کې وارد شوي دي، یعني کله به د «صلصلة الجرس» په شان راتله، او کله به پرښتې مخامخ راتللې، او د انسان په شان به یې بالمشافه خبرې کولې، په دغو کې به د قرآن وحي أغلبًا په ړومبني کیفیت سره راتله.

بِلِسَانٍ عَرَبِيٍّ مُّبِينٍ ﴿١٩٥﴾

په ژبه عربي ښکاره سره (راوړی دی دغه قرآن جبریل پر زړه ستا).

تفسیر: یعني په نهایت فصیح، ملیح، لایح عربي ژبه کې یې نازل کړ، له دې ځایه معلومېږي چې له ﴿عَلَىٰ قَلْبِكَ﴾ څخه دغه مراد نه دی چې یوازې قرآني مضامین د رسول الله صلی الله علیه وسلم پر زړه نازل شوي دي، او بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه پخپلو الفاظو سره اداء فرمایلي دي، بلکه الفاظ او معاني ټول سره یو ځای د رباني وحې په وسیله د دوی پر مبارک زړه القاء شوي دي.

وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٩٦﴾

او بېشکه (مضامین د) دغه (قرآن) خامخا په کتابونو د ړومبنیو کې (هم لیکلي دي).

تفسیر: یعني د لوی قرآن او د ده د محترم راوړونکي خبر په پخوانیو اسماني کتابونو کې موجود دی، پخوانیو انبیاوو پر له پسې دغه وړاندوینه او زېری کړی دی، لکه چې سره له زیاتو تحریفاتو او تبدیلاتو لا تر اوسه هم د داسې وړاندوینو یوه ذخیره موندله کېږي، او داسې هم مطلب کېدی شي چې د دغه پاک قرآن اکثریه مضامین اجمالاً یا تفصیلاً په پخوانیو کتابونو کې موندل کېږي، خصوصًا توحید، رسالت، قصص او نور هغه مضامین چې په هغو کې ټول سماویه کتابونه او ګرد انبیاء او مرسلین علیهم السلام متّفق او متحد دي.

أَوَلَمْ يَكُن لَّهُمْ آيَةً أَن يَعْلَمَهُ عُلَمَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿١٩٧﴾

آیا نه ده دغو (کفّارو) ته دلیل (په حقّانیت د قرآن دا خبره) چې پوهیږي پر دغه (قرآن) عالمان د بني اسرائیلو (او یقین پرې کوي بلکه لوی حجّت دی).

تفسیر: یعنې د بني اسرائیلو علماء ښه پوهیږي چې دا هم د هغه کتاب او رسول الله دی، چې د هغه اطلاع په پخوانیو اسماني صحیفو کې ورکړی شوې وه، لکه د هغوی څخه ځینو علانیه او ځینو پخپلو مخصوصو مجالسو کې د دغه حق امر اقرار کړی دی، او ځیني انصاف خوښوونکي د همدغه علم په بناء مسلمان شوي هم دي، لکه عبد الله بن سلام او نور، الغرض د یوه منصف فهیم لپاره چې د هغه زړه د حق طالب وي، او له الله تعالی څخه هم ویریږي، په دغه څیز کې لوی دلیل د قدرت او عبرت شته، چې د نورو مذاهبو علماء هم پخپلو زړونو کې د دغه عظیم الشأن قرآن په حقّانیت پوهیږي، اګر که د ځینو عللو او عواملو لامله په ځینو اوقاتو کې د هغه په اعلام او اقرار سره جرأت نشي کولی.

وَلَوْ نَزَّلْنَاهُ عَلَىٰ بَعْضِ الْأَعْجَمِينَ ﴿١٩٨﴾ فَقَرَأَهُ عَلَيْهِم مَّا كَانُوا بِهِ مُؤْمِنِينَ ﴿١٩٩﴾

او که نازل کړی وی مونږ قرآن پر ځینو عجمیانو باندې. پس لوستلی وی (ځینو عجمیانو) دغه (قرآن) پر دغو (کفّارو)؛ نو نه به وو دوی پر ده باندې ایمان راوړونکي.

تفسیر: یعنې تاسې خو د عربو فصحاوو څخه یئ، ممکن دي د معظمې مکې مشرکان داسې ووایي، چې دغه قرآن به تا له خپله ځانه جوړ کړی وي، حال دا چې دغه قرآن د اعجاز هغه حد ته رسېدلی دی، چې د هغه مثل ټول انسانان او پېریان هم نشي جوړولی او راوړلی، خو بیا هم د ویلو لپاره دغسې یو احتمال پیدا کولی شي، لیکن د دوی د ضد، عناد، شقاوت او بدبختي حال دا دی چې فرض یې کړئ، که دغه قرآن پر کوم غیر فصیح عرب یا داسې عجمي انسان باندې نازلېدی چې پر یوه حرف عربي ویلو هم قادر نه وی، بلکه په فرض محال سره پر کوم لا یعقل حیوان نازلېده؛ خو بیا هم دغه خلق د هغه منونکي نه وو، په دغه وخت کې به یې څه نور احتمالات پیدا کول.

كَذَٰلِكَ سَلَكْنَاهُ فِي قُلُوبِ الْمُجْرِمِينَ ﴿٢٠٠﴾ لَا يُؤْمِنُونَ بِهِ حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ﴿٢٠١﴾ فَيَأْتِيَهُم بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٠٢﴾ فَيَقُولُوا هَلْ نَحْنُ مُنظَرُونَ ﴿٢٠٣﴾

همداسې ننه ایستلی دی مونږ دا (تکذیب د قرآن) په زړونو د مشرکانو (په قراءت د نبي عربي سره). نه راوړي دوی ایمان په دې (قرآن) تر هغه پورې چې ویني دوی عذاب دردناک. پس رابه شي (دغه عذاب) دوی ته یو ناڅاپه حال دا چې دوی به نه پوهیږي. پس وایي به دوی آیا یو مونږ چې انتظار راته کاوه شي (چې ایمان راوړو؟، نو وبه ویلی شي ورته چې نه).

تفسیر: شیخ الهند او ځینو نورو مفسرینو د ﴿سَلَكْنَاهُ﴾ ترجمه داسې کړېده: «همداسې ننه ایستلی دی مونږ دا عناد او انکار په زړونو د مشرکانو کې، الخ»، یعنې هغه انسان چې پر جرائمو او ګناهونو عادي شي، او خپلې ګردې قواوې په شرارت او سرکښی لګوي؛ نو الله تعالی هم سم له خپله عادته د ده زمام (واګې) ور سستوي، او د ده په زړه کې د انکار او تکذیب اثر ته ځای ورکوي، دغه تقریر د شیخ الهند (رحمه الله) له ترجمې سره سم وشو، لیکن ډېر مفسّرین د ﴿سَلَكْنَاهُ﴾ ضمیر د قرآن په طرف اړوي، یعنې قرآن مو په دې ډول سره د مجرمانو په زړونو کې ورداخل کړی دی، چې دوی په خپلو زړونو کې ښه پوهیږي چې دغه له سره د بشر کلام نشي کېدی، خو بیا له ضده او عناده ایمان نه راوړي، او در ګرده تکذیب کوي، تر هغه پورې چې په دنیا یا آخرت کې دردناک عذاب پخپلو سترګو سره ویني، نو هلته به

یې ومني، چې بېشکه نبي رښتین وو، او هغه کتاب چې له ځان سره یې راوړلی وو هم رښتیا وو، مګر دغه ویل به ورته هیڅ نفع نه ورسوي او چې کله د الله تعالی په عذاب ناڅاپه اخته شي نو بیا به د مهلت غوښتلو په شیبه کې شي لیکن دغه مهلت به ورته نه ورکول کیږي ځکه چې وخت یې تیر شو.

أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴿٢٠٤﴾ أَفَرَأَيْتَ إِن مَّتَّعْنَاهُمْ سِنِينَ ﴿٢٠٥﴾ ثُمَّ جَاءَهُم مَّا كَانُوا يُوعَدُونَ ﴿٢٠٦﴾ مَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يُمَتَّعُونَ ﴿٢٠٧﴾

آیا پس په راتلو د عذاب ځمونږ کې دوی جلتي کوي؟. آیا پس وینې ته خبر راکړه ماته که چیرې نفع ورکړو مونږ دوی ته څو کاله (په حیات سره). بیا راشي دوی ته هغه (عذاب) چې وو دوی چې وعده یې کړی شوې وه (له دوی سره). نو نه دفع کوي له دوی نه عذاب هغه شی چې وو دوی چې نفع ورکولی شوه دوی ته (په هغه باندې).

تفسیر: یعنې سره د دومره مهلت او ډیل چې پخوا له دې نه دوی ته ورکړی شوی وو، هغه به یې هم په هغه وخت کې په کار نه ورځي، په دغه وخت کې د دغو ډېرو کلونو مهلت کالعدم ورښکاري، او داسې به ګڼي چې په رښتیا سره دوی ډېر ژر نیولي شوي دي: ﴿كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا﴾ (د النازعات سورت، (۲) رکوع، (۴۶) آیت، (۳۰) جزء).

وَمَا أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنذِرُونَ ﴿٢٠٨﴾ ذِكْرَىٰ وَمَا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٢٠٩﴾

او نه دي هلاک کړي مونږ هیڅ کلی (ښار) مګر چې وو هغه کلي او ښار ته ویروونکي (له عذاب د الله نه). لپاره د ذکر پند ورکولو دوی لره، او نه وو مونږ ظالمان (په هلاک د دوی کې).

تفسیر: یعنې د کوم یو قوم د ژوندون څادر هم داسې نه دی ټول کړی شوی، بلکه پخوا د عذاب له نزوله کافي مهلت ورکړی شوی دی، او ویښوونکي، ویروونکي او هوښیاروونکی نبي ورلېږلی شوی دی، څو خلق په غفلت کې پاتې نه شي، کله چې هغوی په هیڅ ډول د انبیاوو خبرو ته غوږ نه دی نیولی؛ نو وروسته له هغه ګرد سره تباه او برباد کړی شوي دي، (العیاذ بالله).

وَمَا تَنَزَّلَتْ بِهِ الشَّيَاطِينُ ﴿٢١٠﴾ وَمَا يَنبَغِي لَهُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿٢١١﴾

او نه دی راوړی دا (قرآن) شیطانانو. او نه ښاییږي دوی ته (دغه راوړل) او نه طاقت او قدرت لري (شیطانان د راوړلو د قرآن).

تفسیر: یعنې دغه کتاب د الله تعالی له جانبه جبریل امین راوړی دی، د شیاطینو راوړی شوی نه دی، آیا دغه خبره شیاطینو ته کله ممکنه ده، چې د داسې کتاب یو توری هم هغوی وویلی شي؟ د دوی د طبائعو خاصه خو ضلالت او ګمراهي ده، او پر ته (علاوه) له فساد او ظلمت خورولو څخه بل څه کار نه لري، او دغه کتاب له اوله تر آخره پورې له رشد او صلاح او د هدایت له نوره ډک دی، چې د دې تعلیم په اثر داسې یو مقدّس جمعیت تیار شوی دی، چې د هغوی په شان د ځمکې پر مخ تر اسمان لاندې ما سوا له انبیاء الله څخه بل کوم متقي، صادق، موحد، او خائف من الله جمعیّت نشته، نو دغه کتاب د علومو او معارفو هیڅ یوه رابطه او مناسبت د شیطاني طبائعو سره نه لري، او نه شیطان د دې خبرې وړ (مستحق) او لایق دی، چې دغسې یو عظیم الشأن متبرّک د امانت بار پر خپلو اوږو واخیستی شي.

﴿إِنَّهُمْ عَنِ السَّمْعِ لَمَعْزُولُونَ ﴿٢١٢﴾﴾

بېشکه دغه شیطانان له اورېدلو (د کلام د پرښتو) خامخا بر طرف منع کړی شوي دي.

**تفسیر:** یعنې د قرآن د نزول په وخت کې د هغه د حفاظت لپاره داسې زورورې غیبي پیرې درولې شوي دي، چې شیاطین له سره هغه ته نشي ورنژدې کېدی، او نه یو توری یې له لاري تښتولی شي، کما قال الله تعالی: ﴿وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ ۖ فَمَن يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا﴾ (۲۹ جزء، د الجن سورت (۱) رکوع (۹) آیت)، ﴿فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا﴾ (۲۹ جزء، د الجن سورت (۲) رکوع (۲۷) آیت)، ﴿لَّا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ ۖ تَنزِيلٌ مِّنْ حَكِيمٍ حَمِيدٍ﴾ (د حم السجده سورت (۵) رکوع، (۴۲) آیت، (۲۴) جزء).

**تنبیه:** د شیاطینو د غیبي خبرو د اورېدلو لپاره د کوښښ او د دوی ناکام پاتې کېدلو په متعلق د «حجر» د سورت په شروع کې مفصّل کلام کړی شوی دی؛ هلته دې ولوستل شي !.

﴿فَلَا تَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ فَتَكُونَ مِنَ الْمُعَذَّبِينَ ﴿٢١٣﴾ وَأَنذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ ﴿٢١٤﴾ وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢١٥﴾ فَإِنْ عَصَوْكَ فَقُلْ إِنِّي بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٢١٦﴾﴾

پس مه بوله ته له الله سره معبود بل (حاکم، او که دې داسې وکړه) پس شې به ته له عذاب ورکړ شویو. او ویروه ته (له عذابه ای محمده ! هغه) خپلوان د تا چې ډېر نژدې دي (درته). او ښکته کړه وزر خپل (یعنې نرمي وکړه) هغه چاته چې متابعت یې کړی دی ستا له مؤمنانو نه. پس که نافرماني وکړي (دغه خپلوان دې له تانه)؛ پس ووایه ته (ای محمده ! دوی ته) بېشکه زه بېزاره یم له هغه (شرک او معاصي) چې کوئ یې تاسې.

**تفسیر:** دغه یې فرمایلي دي محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او اورولي یې دي نورو ته، یعنې کله چې دغه کتاب بلاشک او شبهه د الله تعالی له جانبه نازل کړی شوی دی، شیطان د یوې ذرې په اندازه هم په کې مداخله نه ده کړې، نو د قرآن پر تعلیم ټګ وکړه، چې په کې أصل الأصول توحید دی، د شرک او کفر او تکذیب لاره مه اختیاروه، که نه د الله تعالی له عذابه د نجات هیڅ لاره نشته، ځینو مفسّرینو دا خطاب عام کړی هر هغه چاته چې صلاحیت د مخاطبې د دې خطاب لري.

یعنې له نورو څخه پخوا خپلو اقاربو او خپلوانو ته تنبیه ورکړئ، چې په خیر غوښتلو کې د دوی حق مقدم دی، برسېره په دې د انسانانو د صداقت او حقّانیت امتحان او ازموینه هم د خپلو او اقاربو په معاملو کې اخیستل کیږي، شاه صاحب لیکي: «کله چې دغه آیت نازل شو؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم ګردو قُریشو ته په زوره واوروه، آن تر عمې (ترور) او لور او اکا پورې یې هم ورساوه، چې د خپلو ځانونو لپاره فکر وکړئ، چې د الله تعالی په حضور کې تاسې مخامخ کیدونکي یئ، او زه هلته ستاسې لپاره هیڅ نشم کولی.

﴿وَتَوَكَّلْ عَلَى الْعَزِيزِ الرَّحِيمِ ﴿٢١٧﴾﴾

او توکل وکړه (په ټولو مهماتو کې) پر ښه قوي غالب (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکي.

**تفسیر:** یعنې نافرماني کوونکی هر څوک چې وي، او هومره چې وي؛ ستا هیڅ نشي خرابولی، له ګردو څخه بېزاره او یواځې پر پاک الله تعالی اعتماد او اطمینان ولره، چې لوی زبردست ذات دی، او د هیچا هیڅ شی د ده په مقابل کې نشي چلېدی، او رحم او مهرباني کوونکی هم دی، لکه چې دی له خپلې مهربانی هر وخت پر تا د مهربانی نظر لري، او خپل رحمت او عنایت درباندې مبذولوي.

الَّذِىْ يَرٰىكَ حِيْنَ تَقُوْمُ ﴿۲۱۸﴾ وَتَقَلُّبَكَ فِى السّٰجِدِيْنَ ﴿۲۱۹﴾

هغه (الله) چېويني تا کله چې پاڅېږې يواځې (لپاره د تهجّد) او (هم ويني) ګرځېدل اوښتل راوښتل ستا (په صف د) ساجدانو کې.

تفسير: کله چې ته د لمانځه لپاره درېږې، او د جماعت په لمانځه کې نقل او حرکت رکوع او سجود او نور کوې، او د مقتديانو حال احوال ته ګورې.

اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۲۲۰﴾ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ عَلٰى مَنْ تَنَزَّلُ الشَّيٰطِيْنُ ﴿۲۲۱﴾ تَنَزَّلُ عَلٰى كُلِّ اَفَّاكٍ اَثِيْمٍ ﴿۲۲۲﴾

بېشکه دغه (الله) هم دی دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه علم والا (په ټولو احوالو). آيا خبر درکړم زه تاسې ته (ای مشرکانو) په هغو (خلقو) چې کوزېږي شيطانان (پر هغوی). (بيا پخپله الله فرمايي) کوزېږي (شيطانان) پر هر ډېر دروغجن کذّاب ډېر ګناهګار.

تفسير: دلته بيا د قرآن په صدق او د شان پر عظمت تنبيه فرمايي، يعنې آيا داسې ويل کېدی شي چې (معاذ الله) شيطان پرې وحي راوړه؟ راځئ چې زه تاسې ته وښيم چې شيطاني وحي پر څه قسم خلقو نازلېږي؟ هغه پر دروغجنانو بدمعاشانو او بدکارانو باندې راځي، ځکه چې شيطانان له رښتينو او نېکو انسانانو څخه بېخي مرور او بېزاره او هغوی ته په بده ستر ګه ګوري، او له هغو دروغجنانو دغابازانو مکارانو څخه خوښي او خوشالي کوي، چې د ده له مرضي سره برابر وي، ښه، له ګردو صادقانو څخه زيات صدّيق او له ګردو نېکانو څخه زيات نېک او متقي انسان د شيطاني وحي سره څه نسبت لري؟ د رسول الله صلى الله عليه وسلم صدق، امانت، اتقاء، طهارت، خوف عن الله خو هغه عالي اوصاف دي، چې د صباوت له وخته د نبوّت تر مدّت پورې د ده ګرد قوم هغه منلي دي، او تسليموي يې، تر دې چې «الصادق الأمين» لقب د همدغو له جانبه همدوی ته ورکړی شوی وو.

يُّلْقُوْنَ السَّمْعَ وَاَكْثَرُهُمْ كٰذِبُوْنَ ﴿۲۲۳﴾

چې ږدي (دا شيطانان) غوږ (خبرو د پرښتو ته) او اکثر د دوی دروغجنان دي. (يا غورځوي شيطان خپلې اورېدلې شوې خبرې له ملائکو کاهنانو ته چې افّاک اثيم دی، او زياتره د دوی دروغجنان دي، چې زياترې خبرې يې دروغ دي).

تفسير: يعنې شياطين د غيبي امورو څخه د يوه نه يوه جزئي امر د خبرو په متعلق کوم شيان له ورا د تښتېدلو په منځ کې اوري، په هغو کې سل نورې خبرې له خپله ځانه ګډوي، او بيا هغه خپلو کاهنو دوستانو ته رسوي، دغه د دوی د وحي حقيقت دی، پر خلاف د دې د انبياوو وحي داسې منظمه او مرتبه محفوظه ده، چې د هغې يو حرف يو حرکت هم نشي پاتې کېدی، ځينو د ﴿يُلْقُوْنَ السَّمْعَ﴾ معنی داسې اخيستې ده، چې شياطين د ملأ الأعلى په طرف غوږ ږدي، که کومه غيبي خبره يا غږ يې غوږ ته ورسيږي، يا دروغجنو ګناهګارانو د شيطان خوا ته غوږونه نيولي وي، که کومه خبره له هغوی ځنې واوري، او بيا ژر تر ژره يې خوروی کوي.

وَالشُّعَرَآءُ يَتَّبِعُهُمُ الْغَاوٗنَ ﴿۲۲۴﴾

او (کافران) شاعران متابعت کوي د دوی ناپوهان (بې لارې).

تفسير: کافرانو به رسول الله صلى الله عليه وسلم ته (استغفر الله) کله کاهن، کله شاعر ويل؛ نو دلته فرمايي چې د شاعرۍ خبرې محض تخيّلات دي، او له تحقيق سره بېخي تعلّق نه لري، نو ځکه په هغه خبره کې ماسوا د مجالسو د تودوالي او

د خوښې او ساعت تېرۍ او چرچې او واه واه ويلو بل کوم مستقل هدايت نه دی، حال دا چې د دغه رسول الله صلی الله عليه وسلم د پاك صُحبت په ميمنيت او د دغه قرآن په بركت په زرهاوو سړيو د نېکۍ او هدايت لارې موندلې دي.

﴿أَلَمْ تَرَ أَنَّهُمْ فِي كُلِّ وَادٍ يَهِيمُونَ ۝٢٢٥﴾

آيا نه ويني ته چې بېشكه دوی (شاعران) په هرې کندې او هرې پندې د (خبرې) کې سرګردانه ګرځي (او ښکته په کې ډوبېږي، او پروا نه کوي چې دا حق دی که باطل).

**تفسير:** يعنې هر مضمون چې د دوی په لاس کې ولوېږ؛ نو دوی هغه پسې اوږدوي، که د چا په تعريف او ستاينه (صفت) کې ولګېدل؛ نو هغه اسمان ته خېژوي، او که د چا په مذمّت کې لګيا شول؛ نو د ټولې دنيا عيوب او مذمّت په هغه کې راټولوي، موجود معلوم ګرځوي، او له معدوم څخه يو خورا ډېر ثابت او معلوم او موجود منظوموي، الغرض دروغ، مبالغه، تخيّل د دوی د کيڼ لاس معمولي لوبې دي، په هره صحراء او بيديا کې چې يو ځلې دوی سم شي، بيا نو دوی بېرته مخ ګرځوونکي نه دي، نو ځکه د اشعارو په نسبت مشهور دي چې: «أكذبه أحسنه»، څومره چې شعر دروغجن وي هم هغومره ښائسته ګڼل کيږي.

﴿وَأَنَّهُمْ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ ۝٢٢٦﴾

او بېشكه دغه (شاعران) وايي هغه چې نه يې کوي دوی.

**تفسير:** يعنې کله چې اشعار لولي؛ نو داسې درښکاري چې د ده قائل به له ځمري څخه زيات زړور وي، او کله چې ويې ګورې؛ نو په انتهايي درجه ډارن، بې زړه او جبان درښکاري، او کله بالعکس چې دوی وګورې؛ روغ رمټ پياوړي (تکړه) او مضبوط درښکاري، ولې د دوی د اشعارو له لوستلو څخه داسې درڅرګندېږي (درښکارېږي) چې د دوی روح قبض شوی، يا يې نبضين له حرکته لويدلي دي، او اوس به مري.

الغرض د الله تعالی دغه معظّم رسول چې خاتم الأنبياء دی د دغه جماعت سره هيڅ علاقه او ارتباط نه لري، او له همدغه جهته يې فرمايلي دي: ﴿وَمَا عَلَّمْنَاهُ الشِّعْرَ وَمَا يَنبَغِي لَهُ﴾، د محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم هره خبره سره کره، جوته، رښتيا، حقه او روښانه، او د تحقيق، عدل او انصاف په ميزان کې تللې شوې وه، هره خبره چې د دوی له مبارکې ژبې څخه وته؛ هم هغه به عملاً لېدلې کېده، آيا شاعر د داسې صفاتو خاوند دی؟ او شاعر هم دې ته ويلی شي؟ کلاّ وحاشا، ثمّ کلاّ وحاشا.

﴿إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانتَصَرُوا مِن بَعْدِ مَا ظُلِمُوا ۗ وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنقَلَبٍ يَنقَلِبُونَ ۝٢٢٧﴾

مګر (نه دي مذموم) هغه (شاعران) چې ايمان يې راوړی دی، او کړي يې دي ښه (عملونه)، او يادوي دوی الله ډېر، او بدل اخلي (له کفّارو په هجو د کفّارو) وروسته له هغه چې ظلم کړی شوی وي (پر هغو)، او ژر به پوه شي هغه کسان چې ظلم يې کړی دی؛ چې کوم ځای ته به بېرته لاړ شي دوی (يعنې بد ځای ته به لاړ شي پس له مرګه).

**تفسير:** مګر هغه څوك چې په هر شعر کې د الله تعالی حمد ووايي، يا د نېکۍ په لوري ترغيب ورکړي، يا د کفر مذمّت يا د ګناه خرابي څرګنده (ښکاره) کړي، يا د هغو کافرانو هجو او بدي ووايي، چې د اسلام هجو کوي، يا که څوك ده ته ايذاء او ضرر ورسوي؛ د هغه ځواب د اعتدال په اندازه ورکړي؛ نو داسې شعر ويل نه دي مذموم، لکه

چې حسّان بن ثابت رضي الله تعالى عنه او نورو به همداسې اشعار ويل، نو ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم پر ده امر صادر کړ، چې د کفّارو جواب ورکړه، روح القُدس ستا سره دی.

د ﴿مِنۢ بَعۡدِ مَا ظُلِمُواْۗ﴾ په مناسبت يې وفرمايل چې: ظالمانو ته به عنقريب خپله آخره خاتمه او انجام معلومېږي، چې د دوی اوښ پر کومه ډډه پرېوځي؟ له ګردو څخه زيات ظلم دا دی چې د الله تعالى کتابونو او انبياوو ته د دروغو نسبت کوي، او په کاهن او شاعر ويلو سره يې تکذيب کوي.

تمت سورة الشعراء بفضل الله تعالى وحسن توفيقه.



# سُورَةُ النَّمْلِ

«د (النمل) سورت مکي دی، (۹۳) آیتونه (۷) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۷) او په نزول کې (۴۸) سورت دی، وروسته د (الشعراء) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

طٰسٓ تِلْكَ اٰيٰتُ الْقُرْاٰنِ وَكِتَابٍ مُّبِيْنٍ ۝١ هُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ۝٢ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ
وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ۝٣ اِنَّ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ زَيَّنَّا لَهُمْ
اَعْمَالَهُمْ فَهُمْ يَعْمَهُوْنَ ۝٤

دا (آیتونه د دې سورت) آیتونه د قرآن، او د کتاب مبین (ښکاره بیانوونکي) دي. (دغه قرآن) سمه صافه لاره ښوونکی دی (ټول جهان ته) او زېری ورکوونکی دی مؤمنانو ته (په نعیم سره). هغه (مؤمنان) چې قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکوي زکات (د اموالو خپلو)، او دوی په (ورځې) آخرې (چې قیامت دی) هم دوی یقین کوي (چې خامخا به راشي په حقه سره). بېشکه هغه کسان چې نه راوړي ایمان په (ورځې) آخرې (چې قیامت دی)؛ ښایسته کړي دي مونږ دوی ته (قبیحه) عملونه د دوی، پس دوی حیران سرګردانه دي (په دغو بدو اعمالو خپلو کې).

تفسیر: یعنې هر هغه څوک چې له ده سره د آخرې خاتمې او انجام فکر او اندېښنه نه وي؛ نو هغه دې د همدغې فاني دنیا په فکر او اندېښنه کې ډوب پروت وي، او د ده د ګردو کوښښونو مرکز همدغه څو ورځنی دنیوي ژوندون دی، او د هغه کتاب او نبي په طرف له سره نه ګوري، چې د دوی مخ له هغه فاني طرف نه د عاقبت او باقي ژوندون په طرف اړوي او متوجه کوي یې، او نه ورته فکر او توجّه کوي، دوی په دنیوي عیش او مینه کې داسې غرق او ډوب تللي دي، چې د هادیانو خبرو ته له سره غوږ نه ږدي، بلکه پر دوی مسخرې کوي او ملنډې وهي، پر اسماني صحائفو طعني وي، او پر انبیاوو مزاح کوي، او همدغه وضعیت پخپل فکر او زعم ښه بولي، او پرله پسې په همدغې ګمراهۍ کې ترقي او پرمختګ کوي.

تنبیه: د «تزیین» نسبت د الله تعالی په طرف له دې حیثیته شوی دی، چې د هر شي خالق او مالک همدی دی، پر کوم سبب باندې د مسبب ترتّب بې د ده د مشیت او ارادې څخه نشي کېدی، لکه چې په نورو ځایونو کې د اضلال، د ختم، د طبع او د نورو نسبت هم ده ته شوی دی.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَهُمْ سُوْٓءُ الْعَذَابِ وَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ هُمُ الْاَخْسَرُوْنَ ۝٥

دا هم هغه کسان دي چې مقرر دی دوی ته ډېر بد عذاب (په دنیا کې) او دوی په آخرت کې هم دوی زیانکاران دي.

تفسیر: یعنې هلته به له ګردو څخه زیات همدوی په نقصان او خساره کې پراته وي.

وَإِنَّكَ لَتُلَقَّى الْقُرْآنَ مِن لَّدُنْ حَكِيمٍ عَلِيمٍ ۝٦

او بېشکه ته (ای محمده !) خامخا درښوولی کېږې (دررسیږې) تاته قرآن له نزده د ښه حکمت والا ښه علم والا (چې الله دی).

تفسیر: یعنې دغه بدبختان پرېږده چې د ضلالت په تیه (میره) کې سرګردانه وګرځي، کله چې دوی د عظیم الشأن قرآن قدر او عزت ونه پېژنده، او د ده د هدایاتو او بشاراتو څخه یې فائده وانخیستله؛ نو ښايي چې د دوی حال او احوال همداسې کېدی، تاسې الله تعالی ته شکر وکړئ، چې د دغه علیم او حکیم له جانبه له ټولو څنې زیات عظیم الشأن کتاب (قرآن) تاسې ته مرحمت شوی دی، چې له هغه څخه تل تاسې ته جدید جدید فوائد دررسیږي، او په هغه کې مؤمنانو ته بشارات او مکذبانو ته عبرتناکه واقعات اورول شوي دي، څو د صادقانو زړونه مضبوط او قوي او د دروغو حمایت کوونکي پر خپلې بدې خاتمې او خراب انجام مطلع شي، لکه چې په همدې غرض وروسته له دې نه د موسی علیه السلام او د فرعونیانو قصه اوروله کیږي.

إِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِأَهْلِهِ إِنِّي آنَسْتُ نَارًا

(یاد کړه) هغه وخت چې وویل موسی ښځې خپلې ته بېشکه چې ما ولید یو اور (له لرې).

تفسیر: دغه له «مدین» نه د راتګ په وخت کې څه وخت چې دوی «وادي» ته ورنژدې شو، کله چې یې په یوه یخه توره تیاره شپه کې لاره ورکه کړې وه، د موسی علیه السلام وینا ده چې له خپلې ښځې سره یې کوي، د دغه مفصله قصه د «طه» د سورت په تفاسیرو کې پخوا تېره شوې ده، هلته دې بیا ولوستی شي.

سَآتِيكُم مِّنْهَا بِخَبَرٍ أَوْ آتِيكُم بِشِهَابٍ قَبَسٍ لَّعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ ۝٧

ژر به راوړم تاسې ته له دې (ځای د اوره) خبر (حال د لارې) یا به راوړم تاسې ته لمبه لګولې (په سر د پلتې یا لرګي) لپاره د دې چې تاسې تاوده شئ (په هغه اور).

تفسیر: یعنې د لارې خبر او پته تاته راوړم که دغه اور سره نژدې خوک وي، که نه اقلا ستاسې د تودېدلو لپاره کومه لمبه یا څکروټه به راوړم.

فَلَمَّا جَاءَهَا نُودِيَ أَن بُورِكَ مَن فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا وَسُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝٨

پس کله چې راغی دغه (موسی) هغه (اور) ته ؛ غږ وکړ شو داسې چې برکتناک کړی شوی دی هغه چې په دغه اور کې دی، او هغه چې چاپېر دی له دغه (اوره)، او (غږ وکړ شو چې) پاکي ده الله ته چې رب (پالونکی) د عالمیانو دی.

تفسیر: کله چې موسی علیه السلام هلته ورسېد؛ دغه خبره ورته معلومه شوه، چې دغه دنیوي اور نه دی، بلکه غیبي او نوراني اور دی، چې په هغه کې د الله تعالی د انوارو آثار څرګندیږي (راښکاره کیږي)، ښايي چې دغه به هم دا وي چې په حدیث کې د هغه په نسبت فرمایلي شوي دي: «حجابه النار»، یا «حجابه النور»، بیا پرې غږ وشو: ﴿أَن بُورِكَ مَن فِي النَّارِ وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ یعنې د ځمکې دغه ټوټه مبارکه ده، او په دغه اور کې چې کومه تجلّي ده؛ هغه هم مبارکه ده، او د ده په منځ او شاوخوا کې کوم ذوات چې دي؛ هغوی ګرد مقدس دي، مثلا پرښتې، یا پخپله موسی علیه السلام، هغه ګرد سره مبارک دي، دغه یې اغلبًا د موسی علیه السلام د مأنوس ګرځولو او د اعزاز او اکرام لپاره فرمایلي دي.

يٰمُوسٰىٓ اِنَّهٗٓ اَنَا اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿٩﴾

اى موسى ! شان دا دى چې زه يم الله ښه غالب قوي (په انفاذ د احكامو) ښه حكمت والا (چې هر كار په تدبير او مصلحت سره كوم).

تفسير: يعنې په دغه وخت كې له تا سره زه پخپله غږېدونكى يم.

وَاَلْقِ عَصَاكَ ؕ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ

او غورځوه همسا خپله (نو يې وغورځوله)، پس كله چې وليدله (موسى) هغه (همسا) چې خوځېدله؛ ګواكې دغه (همسا) يو نرى سپين ځغاستونكى مار دى.

تفسير: ښايي په ابتداء كې به نرى وي، يا به د حركت د سرعت لامله دغه تشبيه وركړى شوي وي، نه د جُثې د صغارت لامله.

وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّلَمْ يُعَقِّبْ ؕ يٰمُوسٰى لَا تَخَفْ ۫ اِنِّيْ لَا يَخَافُ لَدَيَّ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿١٠﴾

نو مخ يې ترې وګرځاوه په شا تلونكى، او راونه ګرځېده بېرته، (نو بيا غږ ورته وشو) اى موسى ! مه وېرېږه (له دې ماره)، بېشكه زه چې يم نه وېرېږي په نزد ځما مرسلان (پيغمبران ـ له هيڅ شي نه).

تفسير: يعنې مرسلانو ته نه دي لايق چې وروسته ځمونږ د قرب دربار د رسېدلو څخه له همسا يا مار يا د بل كوم مخلوق څخه ووېرېږي، په دغه مقام كې ښايي چې د دوى زړونو ته انتهايي سكون او طمأنينت حاصل شي.

تنبيه: دغه طبيعي خوف دى، چې د نبوّت سره څه منافات نه لري.

اِلَّا مَنْ ظَلَمَ ثُمَّ بَدَّلَ حُسْنًۢا بَعْدَ سُوْٓءٍ فَاِنِّيْ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١١﴾

ليكن هغه څوك چې ظلم يې كړى وي (په ځان خپل) بيا بدل راوړي نيكي وروسته له بدۍ (چې په صدق سره ثابت شي)؛ پس بېشكه زه ښه بخښونكى يم (د خطياتو) ډېر رحم كوونكى يم.

تفسير: دغه منقطع استثناء ده، يعنې وروسته له دې نه چې د الله تعالى قرب ته ورسېدې؛ تاته هيڅ وېره او اندېښنه نه ده په كار، خوف او اندېښنه يواځې هغه چاته په كار ده چې كومه ګناه يا خطا يا تقصير يې كړى وي، چې د هغه په نسبت هم ځمونږ په دربار كې داسې قاعده شته، چې وروسته له ګناه كه كوم سړى په صدق او اخلاص سره توبه وباسي، او خپل اعمال او احوال اصلاح او درست كړي، او د نېكيو او حسناتو په وسيله خپله بدي او سيئات محو او ورك كړي؛ نو الله تعالى يې پخپل رحمت سره معافوونكى دى.

وَاَدْخِلْ يَدَكَ فِيْ جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَآءَ مِنْ غَيْرِ سُوْٓءٍ ۫ فِيْ تِسْعِ اٰيٰتٍ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَقَوْمِهٖ ؕ اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿١٢﴾

او ننباسه لاس خپل په ګرېوان خپل كې؛ نو وبه وځي (په خلاف د طبيعي لون خپل) تك سپين بې له كومه عيبه (او مرض، پس سره له دې دواړو معجزو چې حساب دي) په نهو معجزو ستا كې (ورشه) طرف د فرعون ته او قوم د ده ته، بېشكه دوى دي يو قوم فاسقان (وتونكي له فرمان).

تفسير: د دغو معجزاتو بيان د «بني اسرائيل» په سورت كې د ﴿وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسٰى تِسْعَ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ فَسْئَلْ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اِذْ جَآءَهُمْ﴾ الآية ـ آيت لاندې ليكلى شوى دى، هلته دې ولوستل شي !.

فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ اٰيٰتُنَا مُبْصِرَةً قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۳﴾ وَجَحَدُوْا بِهَا وَاسْتَيْقَنَتْهَآ اَنْفُسُهُمْ ظُلْمًا وَّعُلُوًّا ۭ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۱۴﴾

پس کله چې راغلل (فرعون او فرعونيانو ته) آيتونه (معجزې د قدرت) ځمونږ ښکاره روښانې؛ نو وويل دوی چې: دغه سحر (کوډې) دی ښکاره. او منکران شول دوی په دغو (آيتونو)، حال دا چې يقين کړی وو په دغو معجزاتو نفسونو د دوی (چې حق او له جانبه د الله دي، ليکن انکار ترې وکړ دوی) له جهته د ظلم او سرکښی، پس وګوره څرنګه وو عاقبت (آخره خاتمه) د مفسدانو (من الغرق والحرق).

تفسير: يعنې کله چې وقتًا فوقتًا د دوی د ستر ګو د خلاصولو لپاره هغه معجزې ورښودلې کېدې؛ نو دوی به ويل چې: دغه ګردې کوډې او جادو دی، حال دا چې د دوی په زړونو کې په يقيني ډول سره دغه خبرې ځای نيولی وو، چې موسی عليه السلام رښتين دی، او دغه معجزې چې راښيي يقينًا د الله تعالی د قُدرت دلائل دي، سحر، جادو، شعبذه، نظر بندي او بل کوم باطل شی نه دی، او تش د بې انصافۍ، غرور او تکبر لامله عمدًا او د خپل ضمير په خلاف د حق تکذيب او له صدق څخه دوی انکار کاوه، بيا نو څه وشو؟، څو ورځې وروسته له دې نه دغه خبره ورمعلومه شوه چې د داسې ضد کوونکيو معاندانو مفسدانو انجام او عاقبت څه کيږي؟ دوی ټول د قُلزم د بحيرې د امواجو يوه ګوله شول، او هيڅ يوه ته يې ګور او کفن هم نه شو ورپه برخه.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ عِلْمًا ۚ وَقَالَا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ فَضَّلَنَا عَلٰى كَثِيْرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۵﴾

او خامخا په تحقيق ورکړی وو مونږ داود ته او سليمان ته يو خاص علم، او وويل دواړو چې: ټولې ثناوې ستاينې (صفتونه) دي الله ته، هغه چې مشرتيا (فضيلت) يې راکړی دی مونږ ته پر ډېرو له (هغو) بندګانو خپلو چې مؤمنان دي.

تفسير: سُليمان د داود عليهما السلام ځوی وو، دغه پلار او ځوی ته هر يوه ته الله تعالی علم ورعطاء کړی وو، شرايع، احکام، د سياست اصول، حکومت چلول او نور ګرد علوم د دې لفظ لاندې داخل شول، هغه علم چې الله تعالی داود او سليمان عليهما السلام ته ورکړی وو؛ د هغه اثر دا وو چې دوی د الله تعالی د انعاماتو شکر اداء کاوه، د الله تعالی د کوم نعمت شکر اداء کول د هغه اصلي نعمت څخه لوی نعمت دی.

«پر ډېرو» يې څکه وفرمايل؛ چې ډېرو نورو بندګانو ته الله تعالی پر دوی فضيلت ورکړی دی، پاتې شو پر ګردو مخلوقاتو کلي فضيلت لرل؛ نو دغه انعام او اکرام په ګردو انسانانو کې ځمونږ سيد الکونين خاتم المرسلين فخر الأولين والآخرين محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم ته په برخه شوی دی، اللهم صل وسلم وبارک عليه وعلی آله وأصحابه أجمعين.

وَوَرِثَ سُلَيْمٰنُ دَاوٗدَ

او ميراث واخيست سليمان (نبوّت، علم، سلطنت) له داود څخه (له نوره اولاده يې).

تفسير: يعنې د داود عليه السلام په ځامنو کې د ده اصلي ولي عهد او خليفه سُليمان عليه السلام شو، چې د ده په مبارک ذات کې الله تعالی نبوّت او سلطنت دواړه جمع کړي وو، او داسې مملکت او حکومت يې ورعطاء کړی وو، چې له ده څخه وړاندې او وروسته د بل چا په برخه کې داسې يو صوري او معنوي، ظاهري او باطني عظمت او شوکت نه دی جمع شوی، انسانان، پيريان، طيور، هوا، او نور ټول ورته مسخّر شوي وو، لکه چې د «سبأ» په سورت کې راځي.

وَقَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ عُلِّمْنَا مَنطِقَ ٱلطَّيْرِ

او وویل (سُلیمان) ای خلقو ! ښوولي شوي دي مونږ ته خبرې د الوتونکیو مرغانو.

تفسیر: له دغې خبرې څخه انکار ګواکې د بداهت څخه د انکار په منزلت دی چې طیور او پرندګان کومې خبرې او چرپړ چې کوي، په هغه کې تر یوه حده پورې د افهام او تفهیم شان موندلی کیږي، یو مرغه څه وخت چې خپله جوړه ځان ته رابولي، یا د دانې ورکولو لپاره خپلو نورو ملګرو ته هم خبر ورکوي؛ په دغو ګردو حالاتو کې د ده بولي، لهجه او غږبدل له سره یو شان نه دي، لکه چې د طیورو مخاطبین او سامعین دغه فرق او توپیر په ښه شان سره محسوسولی شي، نو له دې نه مونږ پوهېدی شو، چې د نورو احوالو او ضروریاتو په وخت کې هم د دوی په دغو چونېدلو کې اګر که مونږ ته ډېر متشابه او متقارب هم راښکاره شي، کوم داسې لطیف او خفیف تفاوت او توپیر به ضرور وي، چې پر هغه باندې به دوی پخپلو منځونو کې سره پوهیږي.

د حیواناتو لپاره د جزئي ادراکاتو حصول خو لا له پخوا څخه مسلّم دی، لیکن د اوروپا جدید تحقیقات اوس د حیواناتو عاقلیت د آدمیت تر سرحد پورې قریب کړی دی، تر دې چې د حیواناتو د بولۍ (وینا) د «ابجدو» په تیارولو پسې هم لګیدلي دي.

لوی قرآن خبر راکړی دی چې: «هر شی د خپل رب تسبیح او تحمید کوي، لیکن تاسې پرې نه پوهېږئ، او هر الوتونکی خپل د صلات او تسبیح څخه واقف دی»، په صحیحو احادیثو کې د حیواناتو تکلّم بلکه د محضو جماداتو خبرې کول او تسبیح ویل ثابت دي.

وَأُوتِينَا مِن كُلِّ شَىْءٍ ۖ

او راکړی شوي دي مونږ ته له هر څیز څخه (چې انبیاوو او باچایانو ته ورکاوه شي).

تفسیر: یعنې د داسې عظیم الشأن سلطنت او نبوّت لپاره هغه اشیاء، لوازم او سامان چې په کار دي؛ هغه ګرد یې راعطاء کړه.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ ٱلْفَضْلُ ٱلْمُبِينُ ﴿١٦﴾ وَحُشِرَ لِسُلَيْمَٰنَ جُنُودُهُۥ مِنَ ٱلْجِنِّ وَٱلْإِنسِ وَٱلطَّيْرِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿١٧﴾

بېشکه دغه (عطاء) خامخا همدغه فضل فضیلت دی ښکاره. او جمع کړی شوې لپاره د سُلیمان لښکرې د ده، له پیریانو او (له) انسانانو او (له) مرغانو، بیا به د دوی ډلې تړلې کېدلې (په ترتیب سره).

تفسیر: هر کله به چې سُلیمان علیه السلام کوم طرف ته تلو؛ نو د انسانانو، پیریانو او د طیورو د درې واړو اقسامو لښکر به یې له خپله ځانه سره حسب الضرورت او مصلحت بوتلو، او د دوی په دغو افواجو کې به یو ځانته نظم نسق او انضباط قائم وو، مثلاً وروستني افواج به سره له خپلو ګړندي تللو یا الوتلو خپلو له ړومبنیو افواجو څخه نشو وړاندې کېدی، او نه به هیڅ یو لښکري فرد داسې کولی شو، چې خپله پیره یا وظیفه په خپل سر خوشې کړي، او چېرې لاړ شي، لکه چې نن ورځ په برې، بحري او فضایي قواوو کې پوره نظم، نسق او د عمل اشتراک لیدل کیږي.

حَتَّىٰٓ إِذَآ أَتَوْا۟ عَلَىٰ وَادِ ٱلنَّمْلِ

تر هغه پورې چې راغلل دوی پر کنده د میږیو،

تفسیر: یعنې سُلیمان علیه السلام له خپل لاو لښکر سره له داسې یو میدان څخه تېرېده، چې هلته د میږیانو ډېره لویه ودانی وه.

تنبیه: په کوم ځای کې چې ډېر میږیان سره راټول شي، او هلته په خپل ذوق او سلیقه کورونه جوړ کړي؛ هغه ته په عربي ژبه «قریة النمل» وایي، یعنې «د میږیانو کلی»، مفسّرانو په مختلفو بلادو کې د داسې میدانونو او بیدیاګانو نښه او پته لګولې ده، چې هلته د میږیانو خورا زیات کورونه او کلي شته، چې د دغو له منځه پر یوه باندې حسب الاتفاق د سُلیمان علیه السلام ګذر شوی وو.

قَالَتۡ نَمۡلَةٌ يَّٰٓأَيُّهَا ٱلنَّمۡلُ ٱدۡخُلُواْ مَسَٰكِنَكُمۡ لَا يَحۡطِمَنَّكُمۡ سُلَيۡمَٰنُ وَجُنُودُهُۥ وَهُمۡ لَا يَشۡعُرُونَ ١٨

نو وویل یوه میږي (چې مشر وو پر نورو): ای میږیو! ننوځئ ټول مساکنو - سوړو خپلو ته چې مات او چیت پیت مو نه کړي هرومرو تاسې سلیمان او لښکر د ده، حال دا چې دوی به نه وي پوه (د تاسې له دې پایمالېدو نه).

تفسیر: یعنې سلیماني لښکر خو داسې نه دي چې عمدًا او په قصد سره تاسې وژني، هو! امکان لري چې د لاعلمی او ناپوهی په سبب پایمال شئ، شاه صاحب لیکي: «د میږي غږ هیڅ یو انسان نشي اورېدی، خو د سُلیمان علیه السلام غوږ ته د دوی خبرې ورسېدې، او دوی له هغو څخه معلومات حاصل کړل»، نو دا د هغوی معجزه شوه.

تنبیه: د حیواناتو علماوو له کلونو کلونو راهیسې کومې تجربې چې کړې دي؛ له هغوی څخه دا راڅرګندیږي، چې دغه خوار او حقیر ساکښ (ذي روح) او خوځنده (حشره) هم پخپل اجتماعي حیات، سیاسي نظام کې ډېر زیات له انساني خویونو سره قریب واقع شوی دی، او د دغو امورو اداره په ډېر عجیب او غریب ډول سره کوي، د انسانانو په شان میږیان هم د کورنیو او ټبرو او قبائلو خاوندان دي، په دوی کې هم د تعاون او خواخوږۍ جذبات شته، د دوی د اعمالو تقسیم او حکومت نظام د انساني اداراتو سره ډېر قریب او متشابه لیدل کیږي.

فَتَبَسَّمَ ضَاحِكًا مِّن قَوۡلِهَا وَقَالَ رَبِّ أَوۡزِعۡنِيٓ أَنۡ أَشۡكُرَ نِعۡمَتَكَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ وَعَلَىٰ وَٰلِدَيَّ وَأَنۡ أَعۡمَلَ صَٰلِحًا تَرۡضَىٰهُ وَأَدۡخِلۡنِي بِرَحۡمَتِكَ فِي عِبَادِكَ ٱلصَّٰلِحِينَ ١٩

پس تبسّم وکړ (سُلیمان) په دغه حال کې چې خندا کوونکی وو (وریسې تعجّبًا او سُرورًا) له وینا د هغه میږي، او وویل سُلیمان: ای ربه زما! الهام وکړه ماته (را په برخه کړه) دا چې شُکر وکړم د نعمت ستا هغه چې انعام کړی دی تا پر ما او پر مور پلار زما، او بل دا چې وکړم زه عمل نېک چې (په فضل خپل سره) خوښوې ته هغه، او ننباسه ما (او یو ځای کړه ما) په رحمت خپل سره په (هغو) بندګانو خپلو کې چې صالحان شوي دي.

تفسیر: کله چې سُلیمان علیه السلام د هغه میږي پر خبره وپوهېده؛ متعجب شو، او د سُرور او نشاط له فرطه یې د شکر د اداء کولو جذبه په جوش راغله، او وویل سُلیمان: ای ربه زما! الهام وکړه، را په برخه کړه دا چې شکر وکړم د نعمت ستا هغه چې انعام کړی دی تا پر ما او پر مور او پلار زما او بل دا چې وکړم زه عمل نېک، چې پخپل فضل سره خوښوې ته هغه، او ننه باسه او یو ځای مې کړه په رحمت خپل سره په هغو بندګانو کې چې صالحان دي.

وَتَفَقَّدَ ٱلطَّيۡرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَآ أَرَى ٱلۡهُدۡهُدَ أَمۡ كَانَ مِنَ ٱلۡغَآئِبِينَ ٢٠

او لټونه یې وکړه د مرغانو (او هدهد یې ونه مونده)؛ نو ویې ویل: څه مانع دی ما لره چې نه وینم زه هدهد، بلکه دی هدهد له غائب شویو (د دې ټولې څخه چې یې نه وینم).

تفسير: بناء پر كوم ضرورت سُليمان عليه السلام د الوتونكيو افواجو حاضري واخيسته؛ هدهد د ده په نظر كې رانغی، نو ځكه يې وفرمايل: دا څه خبره ده چې زه هدهد نه وينم؟ آيا د دغو الوتونكيو افواجو په منځ كې پټ دی او زه يې نه وينم؟ يا په واقع سره غير حاضر دی؟.

تنبيه: له طيورو څخه سُليمان عليه السلام مختلف اعمال اخيستل، مثلاً په هوايي سفرونو كې به دوی مأمور وو، چې د سُليمان عليه السلام په سر داسې والوځي، چې د دوی پر تخت سيوری ولويږي، عند الضرورت د اوبو او د نورو ضرورياتو سراغ او پته ولګوي، خطوط او فرامين له يوه ځايه بل ځای ته ورسوي، په دغه وخت كې امكان لري چې هُدهد ته به كوم يو خاص ضرورت ورورپاندې شوی وي، او دی به د هغه لامله غير حاضر شوی وي.

لَأُعَذِّبَنَّهُۥ عَذَابًا شَدِيدًا أَوْ لَأَاْذْبَحَنَّهُۥٓ أَوْ لَيَأْتِيَنِّى بِسُلْطَٰنٍ مُّبِينٍ ﴿٢١﴾

خامخا عذاب به وركړم زه هرومرو ده ته عذاب سخت، يا خامخا ذبح به كړم زه دی، يا به خامخا راوړي دی ماته برهان دليل ښكاره (په غياب خپل چې له دې وجې نه غايب وم).

تفسير: يعنې خپل د غير حاضری كوم واضح او ښكاره دليل راوړاندې كړي.

فَمَكَثَ غَيْرَ بَعِيدٍ فَقَالَ أَحَطتُ بِمَا لَمْ تُحِطْ بِهِۦ وَجِئْتُكَ مِن سَبَإٍۭ بِنَبَإٍ يَقِينٍ ﴿٢٢﴾

پس ځنډ (تأخير) وكړ هدهد نه ډېر (بلكه لږ ځنډ يې وكړ او ژر راغی) پس وويل (هُدهد په جواب د سليمان كې) احاطه وكړه ما په هغه څيز (او پوره پرې خبر شوی يم) چې نه ده احاطه كړې تا (او نه يې پرې خبر) په هغه باندې، او راغلی يم زه تاته له سبا څخه په خبرې تحقيقي يقيني سره.

تفسير: سُليمان عليه السلام ته د هغه ملك احوال په مفصّل ډول سره نه وو رسېدلی، اوس وررسېد، «سبأ» د يوه قوم نوم دی، چې د هغوی ملك په عربستان كې د يمن په اطرافو كې وو (موضح القرآن)، ګواكې د هُدهد په وسيله الله تعالی دغه تنبيه وفرمايله، چې د ډېرو لويو لويو انسانانو علم هم له سره نشي محيط كېدی، وګورئ چې د هغه نبي په شان چې پخپله الله تعالی داسې فرمايلي وو ﴿وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا دَاوُۥدَ وَسُلَيْمَٰنَ عِلْمًا﴾ هغه ته د يوې جزئيې اطلاع هُدهد وررسوي.

إِنِّى وَجَدتُّ ٱمْرَأَةً تَمْلِكُهُمْ وَأُوتِيَتْ مِن كُلِّ شَىْءٍ

بېشكه چې ما وموندله يوه ښځه چې باچاهي يې كوله پر دغه (اهل د سبأ) او وركړی شوي دي دغې (ښځې) ته له هر څيز څخه (چې باچايانو ته وركولی شي).

تفسير: په هر شي كې مال، اسباب، فوج، اسلحه، حسن، جمال ګرد شيان راغلل.

وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ ﴿٢٣﴾

او دی دې ته تخت ډېر لوی.

تفسير: يعنې د دې ملك د ملكې تخت داسې مُكلف، مرصّع او ډېر قيمتدار دی، چې د دنيا هيڅ يوه له باچاهانو سره هغسې تخت نشته، مفسّرينو د دغې ملكې نوم «بلقيس» ليكلی دی، والله أعلم.

وَجَدْتُّهَا وَقَوْمَهَا يَسْجُدُوْنَ لِلشَّمْسِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ فَهُمْ لَا يَهْتَدُوْنَ ﴿٢٤﴾

ومې موندله دغه ښځه او قوم د دې چې سجده کوي دوی لمر ته بې له الله، او ښايسته کړي دي دوی ته شيطان عملونه د دوی، پس منع کړي دي (شيطان) دوی له سمې صافې لارې، پس دوی نه مومي سمه صافه لاره.

تفسير: يعنې هغه قوم مشرکان او د لمر عابدان دي، او شيطان دوی له لارې څخه ايستلي دي، او د شرک رسوم او اطوار د دوی په نظرونو کې ښايسته ورځرګند (ورښکاره) شوي دي، نو ځکه دوی د هدايت لاره نشي موندلی، هُدهد پخپلې دغې وينا سره ګواکې سُليمان عليه السلام ته ترغيب ورکړ، چې د دغه قوم پر خلاف جهاد وکړي.

اَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ ﴿٢٥﴾

ولې دوی نه کوي سجده الله ته؟ هغه (الله) چې راوباسي (ښکاره کوي) پټ شيزونه چې په اسمانونو کې دي، او په ځمکه کې دي، او (هغه الله) چې ورمعلوم دی هر هغه شيز هم چې پټوئ يې تاسې (په زړونو خپلو کې)، او هر هغه شيز چې ښکاروئ يې تاسې (په ژبو خپلو کې).

تفسير: غالبًا د دغه هُدهد د کلام تتمّه ده، معلوميږي چې حيوانات فطرتًا د خپل خالق د صحيح معرفت لرونکي دي، يا د خرق عادت په ډول همدغه يوه هُدهد ته دغسې تفصيلي معرفت ورعطاء کړی شوی وو، هو ! که الله تعالی اراده وفرمايي؛ نو دغسې معرفت په يوه وچ لرګي کې هم پيدا کولی شي.

اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ ﴿٢٦﴾ السجدة

الله هغه ذات دی (چې) نشته هيڅ لايق د عبادت مګر يواځې همدی دی، چې رب د عرش ډېر لوی دی.

تفسير: يعنې د ده د عظيم عرش سره د بلقيس تخت څه مناسبت لري؟.

قَالَ سَنَنْظُرُ اَصَدَقْتَ اَمْ كُنْتَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ﴿٢٧﴾

نو وويل (سُليمان) ژر به وګورو آيا رښتيا ويلي دي تا (ای هدهده ! دغه خبره کې) يا که ته يې له دروغ ويونکيو.

تفسير: يعنې زه ستا د دروغو امتحان اخلم، (بيا سُليمان يو مکتوب وليکه، او هُدهد ته يې وويل):

اِذْهَبْ بِّكِتٰبِيْ هٰذَا فَاَلْقِهْ اِلَيْهِمْ ثُمَّ تَوَلَّ عَنْهُمْ فَانْظُرْ مَاذَا يَرْجِعُوْنَ ﴿٢٨﴾

يوسه ته (ای هُدهده !) ليک ځما دغه پس وغورځوه هغه (ليک) دوی ته، بيا مخ جار باسه له دوی (او پټ نژدې ورته ودرېږه) پس وګوره (له ورايه) چې په څه ځواب رجوع کوي دوی؟.

تفسير: يعنې سليمان عليه السلام يو خط وليکه، او هُدهد ته يې ورکړ، چې د «سبأ» ملکې ته يې ورسوي، او جواب يې ېبرته راوړي، او ورته ويې ويل: څه وخت چې خط دې وروړسوه؛ ښايي چې بيا ترې يوې خوا ته پر څنګ شې، ځکه چې د قاصد مخامخ درېدل د سلطنت له آدابه سره څه تناسب نه لري.

قَالَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اِنِّيْٓ اُلْقِيَ اِلَيَّ كِتٰبٌ كَرِيْمٌ ﴿۲۹﴾ اِنَّهٗ مِنْ سُلَيْمٰنَ

وويل (بلقيس) چې اى اشرافو ! بېشکه زه چې يم راغورځولى شوى دى ماته يو ليک عزتناک. بېشکه دغه (ليک) د سليمان (له طرفه راغلى) دى.

**تفسير:** بلقيس د دغه خط د لوستلو په اثر خپل مشران او درباريان راټول کړل، او دوى ته يې وويل چې: «اى ځما مشرانو ! ماته داسې يو عجيب خط په دغه عجيبه طريقه رارسېدلى دى، چې د يوه معزّز او محترم باچا سُليمان عليه السلام له طرفه راغلى دى، غالبًا دوى به د سُليمان عليه السلام اسم او د ده د بې مثاله حکومت او شوکت اشتهار پخوا له دې نه اورېدلى وي.

وَاِنَّهٗ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ﴿۳۰﴾

او بېشکه (مضمون د دې ليک دا دى چې شروع) په نامه د الله چې خورا مهربان ډېر رحم کوونکى دى.

**تفسير:** هـم هغسې چې دلته دغه «تسميه» د دغه قرآني آيت جزء دى، د قرآنکريم په نورو ځايونو کې هم ځان ته يو مستقل قرآني آيت دى، د تسميې لوستل په اول د هـر سـورت کې يو ضروري امر دى، د حنفيانو په مذهب لکه چې پاس مو وليکل «تسميه شريفه» د عظيم الشأن قرآن يو ځان ته مستقل او جلا مبارک آيت دى، چې لپاره د تبرّک او فصل د قرآني سورتونو د هر سورت په اول کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په امر ليکلې شوي دي، د امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهما الله په مذهب برسېره په دې چې تسميه شريفه د فاتحې شريفې د سورت اوله برخه او جزء دى؛ په نورو قرآني سورتونو کې هم پرته (علاوه) د توبې له سورته داخله ده.

اَلَّا تَعْلُوْا عَلَيَّ وَاْتُوْنِيْ مُسْلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾

(مقصد ځما دا دى) چې لويي (او کبر) مه کوئ تاسې پر ما او راځئ تاسې ماته مسلمانان غاړه اېښودونکي (الله ته).

**تفسير:** داسې جامع مختصر او له عظمته ډک خط به ممکن دى چې ډېر لږو باچاهانو په دنيا کې بل کوم باچا ته ليکلى وي، مطلب يې دا دى چې: «ځما په مقابل کې زور آزمويل هيڅ فائده نه دررسوي، ستاسې خير په همدې کې دى چې اسلام ومنئ !، او ځما احکامو ته غاړه کېږدئ !، او د انسانانو په شان په سمو ګوتو ماته راشئ ! ځکه چې ستاسې لويي، تکبّر او ځان مشر ګڼل ځما په مقابل کې بې فائدې دي».

قَالَتْ يٰٓاَيُّهَا الْمَلَؤُا اَفْتُوْنِيْ فِيْٓ اَمْرِيْ ۚ مَا كُنْتُ قَاطِعَةً اَمْرًا حَتّٰى تَشْهَدُوْنِ ﴿۳۲﴾

وويل (بلقيس) چې اى اشرافو ! فتوى (مشوره) راکړئ تاسې ماته په دغه کار ځما کې، نه يم زه فيصله کوونکى د کوم کار تر هغه پورې چې حاضر شئ تاسې ماته (مشوره راکړئ !).

**تفسير:** يعنې تاسې مشوره راکړئ ! چې د هغه ځواب په څه مضمون سره وليکل شي، او بالمقابل يې څه اقدامات او چارې وکړى شي؟ لکه چې تاسې ته معلوم دي د کومې لويې معاملې (قطعي) فيصله بې د تاسې له پوښتنې او مشورې څخه نه کوم.

قَالُوْا نَحْنُ أُولُوا قُوَّةٍ وَّأُولُوا بَأْسٍ شَدِيْدٍ ۙ وَّالْأَمْرُ إِلَيْكِ فَانْظُرِيْ مَاذَا تَأْمُرِيْنَ ﴿۳۳﴾

وويل دغو (اشرافو) چې مونږ خاوندان د قوّت زور يو، اوخاوندان د جنګ سخت يو، او امر (حکم، اختيار) تاته دی، پس وګوره (ای ملکې !) چې د څه شي امر (حکم) کوې ته (پر مونږ باندې چې ويې منو !).

تفسير: يعنې له مونږه سره د زور او طاقت او د حربي لوازمو او سامانونو هيڅ تقليل او کمی نشته، او نه د کوم باچا له ويرولو څخه مونږ ډاريږو، که ستا حکم صادر شي؛ نو مونږ له سُليمان عليه السلام سره جنګ ته تيار يو، برسېره په دې ته خپلواکه او خپله مختاره يې، سره له غوره پوهه او چرته (خياله) مونږ ته هر هغه حکم چې مناسب يې ګڼې؛ را يې کړه ! ځکه چې ځمونږ غاړې ستاسې د هر حکم په مقابل کې ښکته دي، معلوميږي چې د درباريانو فکر او رايه د جنګ کولو په لوري وه، مګر ملکې په جنګ کولو کې تعجيل مناسب ونه ګاڼه، او يو بين البين داسې معتدل صورت يې غوره کړ، چې د هغه ذکر اوس راځي:

قَالَتْ إِنَّ الْمُلُوْكَ إِذَا دَخَلُوْا قَرْيَةً أَفْسَدُوْهَا وَجَعَلُوْا أَعِزَّةَ أَهْلِهَا أَذِلَّةً ۚ وَكَذٰلِكَ يَفْعَلُوْنَ ﴿۳۴﴾
وَإِنِّيْ مُرْسِلَةٌ إِلَيْهِمْ بِهَدِيَّةٍ فَنٰظِرَةٌ ۢ بِمَ يَرْجِعُ الْمُرْسَلُوْنَ ﴿۳۵﴾

نو وويل (بلقيس چې په جنګ کې خير نشته)، بېشکه باچاهان هر کله چې ننوځي په کوم کلي (ښار) کې (په غلبه او قهر)؛ خرابوي دوی هغه (ښار)، او ګرځوي دغه (باچاهان) عزيزان (مشران) د اهل د هغه ذليلان (سپک بنديان)، او همداسې (چې ومې ويل) دوی کوي. او بېشکه زه لېږونکې يم دوی ته (قاصد) سره له هديې (پېشکشۍ)، پس بيا زه کتونکې يم چې په څه حال بېرته راځي دغه لېږلي شوي (چې قبلوي دغه پېشکشي يا يې بېرته راليږي).

تفسير: معلوميږي چې د خط د مضمون له عظمته او شوکته او له نورو قرائنو، اماراتو او آثارو څخه بلقيس متيقنه شوه، چې زه پر دغه باچا برې نشم موندلی، او اقلا د دغې خبرې قوي احتمال د دې په زړه کې پيدا شوی وو، چې د داسې لويو شان او شوکت لرونکيو باچاهانو سره جنګېدل د لوبو او ټوکو خبره نه ده، که دی غالب شو، لکه چې د ده د برې قوي امکانات شته؛ نو د نورو ملوکو او سلاطينو له عمومي عادته سره موافق به دغه ځما ګرد ښارونه سره لاندې باندې کړي، او داسې يو لوی انقلاب به ونښلي چې په هغه کې به مشران، کشران، عزت لرونکي خلق به بې عزته کيږي، او ډېر انسانان به خواران او ذليلان کيږي، لهذا ځما په فکر خو ښه داسې راښکاري چې مونږ په جنګېدلو کې جلتي او تلوار ونه کړو، بلکه لازم دي چې د مقابل جانب قوّت، قدرت، طبيعي رجحانات، او د حکومت نوعيت څخه معلومات حاصل کړو، او په دې باندې ښه ځان خبر کړو، چې هغوی په رښتيا سره څه شی له مونږ څخه غواړي؟ که مونږ څه تحائف او هدايات ورولېږو، او دغه راتلونکې مصيبت د هغو په وسيله له خپله ځانه لرې وساتو؛ نو ډېر به ښه شي، که نه په دغه ذريعه مونږ ته لږ څه د دوی وضعيت او رويه راڅرګنديږي (ښکاره کيږي)، څو بيا مونږ له هغه سره مناسب رويه او لاره ځان ته غوره کړو.

فَلَمَّا جَآءَ سُلَيْمٰنَ قَالَ أَتُمِدُّوْنَنِ بِمَالٍ فَمَآ اٰتٰىنِۦَ اللّٰهُ خَيْرٌ مِّمَّآ اٰتٰىكُمْ ۚ بَلْ أَنْتُمْ بِهَدِيَّتِكُمْ تَفْرَحُوْنَ ﴿۳۶﴾ اِرْجِعْ
إِلَيْهِمْ فَلَنَأْتِيَنَّهُمْ بِجُنُوْدٍ لَّا قِبَلَ لَهُمْ بِهَا وَلَنُخْرِجَنَّهُمْ مِّنْهَآ أَذِلَّةً وَّهُمْ صٰغِرُوْنَ ﴿۳۷﴾

پس کله چې راغی (قاصد د بلقيس) سُليمان ته؛ نو وويل (سُليمان آيا مددګاري کوئ تاسې له ما سره په مال سره، پس هغه څيز چې راکړی دی ماته الله (له نبوّت، علم، سلطنت) خير ډېره غوره

دی له هغه څیزه څخه چې در کړی دی (الله) تاسې ته، بلکه تاسې په دغه هدیه (بېشکشی) خپلې خوشالېږئ. بېرته ورشه دوی ته (ای قاصده چې راشي ماته ! که نه) پس خامخا وربه شو مونږ دوی ته سره له (داسې زورور) لښکر، چې نه وي هېڅ طاقت د مقابلې دوی ته له هغو لښکرو سره، او خامخا وبه باسو هرومرو دوی له دغه (ښار د سبأ څخه) په دې حال کې چې بې عزته بې حُرمته وي، او دوی به خوار او سپک وي.

تفسیر: یعنې دغه تحفې او هدایـا دې تاسو ته در مبارك وي، چې په ورکولو یې تفاخر کوئ، او په اخیستو یې په تکثّر د اموالو سره خوشالېږئ، آیا ستاسې په فکر او اټکل کې زه تش یو دنیوي باچا درغلم؟ چې د مال او متاع مطامع ماته راوړاندې کوئ؟ تاسې ته دې معلوم وي؛ هغه روحاني دولت او مال، حکومت او دولت چې الله تعالی راعطاء کړی دی؛ هغه ستاسې له دغه ملك او دولت څخه ډېر اعلی او اولی دی، زه ستاسو دغو هدیو او تحائفو ته هیڅ اهمیت نه ورکوم، یعنې بېرته ورشه ای قاصده ! بلقیس او قوم ته یې ووایه چې: را دې شي ټول مسلمانان غاړې ایښودونکي، او که رانغلل دوی پس رابه ولو مونږ خامخا د دوی جنګ او مقابلې ته داسې لښکرې چې له جهته د ډېروالي اوقوّت نه دی هیڅ طاقت د مقاومت (ودرېدو) د دوی له هغو لښکرو سره، او هرومرو (خامخا) وبه باسو او وبه شړو مونږ خامخا دوی له دغه ښار د سبا څخه په دې حال کې چې بې عزته او بې حرمته به وي.

قَالَ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمَلَؤُاْ أَيُّكُمۡ يَأۡتِينِي بِعَرۡشِهَا قَبۡلَ أَن يَأۡتُونِي مُسۡلِمِينَ ﴿٣٨﴾

وویل (سُلیمان) ای (ځما د دربار) اشرافو ! کـوم یو لـه تاسې به راوړي ماته تخت د دې (بلقیسې) پخوا له هغه چې راځي دوی ماته مسلمانان (غاړه ایښودونکي الله ته).

تفسیر: دغه سفیر بېرته لاړ، او د جنګ پیغام یې وروړسوه، بلقیس متیقنه شوه چې دغه کوم معمولي باچا نه دی، د ده زور او قوّت د الله تعالی په زور او قوّت سره دی، له جدال څخه به هیڅ یوه ګټه او فائده په لاس رانه شي، او نه د داسې باچا په مقابل کې له چل، فریب څخه څه کار اخیستل کیږي، بالآخر د اطاعت او انقیاد په غرض د ډېرو ساز او سامان او لأو لښکر سره د سُلیمان علیه السلام په حضور د تشرّف په مقصد رهي (روانه) شوه، کله چې بلقیس د شام سرحداتو ته ورنژدې شوه، سُلیمان علیه السلام خپلو درباریانو ته وفرمایل چې: آیا داسې یو څوك شته چې د بلقیس شاهي تخت د دې د راتللو د مخه حاضر کړي؟.

تنبیه: له ﴿قَبۡلَ أَن يَأۡتُونِي مُسۡلِمِينَ﴾ څخه معلوم شو، چې پخوا له اسلامه او انقیاده د حربي مال مباح دی.

قَالَ عِفۡرِيتٞ مِّنَ ٱلۡجِنِّ أَنَا۠ ءَاتِيكَ بِهِۦ قَبۡلَ أَن تَقُومَ مِن مَّقَامِكَۖ وَإِنِّي عَلَيۡهِ لَقَوِيٌّ أَمِينٞ ﴿٣٩﴾

وویل یو زورور سخت قوي له (قومه د) پیریانو چې: زه به راوړم تاته دا (تخت) پخوا د هغه چې پاڅېږې ته (ای نبي الله) له دغه ځایه خپله، او ببشکه زه پر دغه (راوړلو) د دې (تخت) خامخا قوي (زورور معتبر) امانتګر یم (چې نه کوم خیانت په جواهرو د ده کې).

تفسیر: د سُلیمان علیه السلام دربار به هره ورځ تر یو ټاکلي (مقرّر کړي) وخت پورې دوام درلود (لرلو)، مطلب یې دا دی چې «پخوا له دې نه چې تاسې له خپله درباره پاڅېږئ؛ زه به دغه شاهي تخت درحاضر کړی شم»، مګر په دغه کې هم لږ څه ځنډ (تأخیر) واقع کېده، او سُلیمان علیه السلام غوښته چې له دې نه مخکې د دې تخت راحاضر کړی شي.

قَالَ الَّذِیْ عِنْدَهٗ عِلْمٌ مِّنَ الْكِتٰبِ اَنَا اٰتِیْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ یَّرْتَدَّ اِلَیْكَ طَرْفُكَ ؕ

وویل هغه (سړي) چې د ده سره يو علم وو له كتابه (منزّله يعني اسم الأعظم) زه به راوړم تاته دا (تخت) پخوا له هغه چې بيا راوګرځي تاته سترګه ستا، (چې نيولې دې وي كوم شي ته).

**تفسير:** راجح خو همدغه معلومېږي چې دغه سړى د سُليمان عليه السلام صحابي او وزير آصف بن برخيا رضي الله تعالى عنه دى، چې د سماوي كتابونو عالم او د الله تعالى د اسماوو او د كلامونو له تأثيراتو ښه واقف وو، عرض وكړ چې: زه د سترګو په يوه رپه كې د هغې تخت در حاضرولى شم، يعنې همدا چې تاسې چاته وګورئ پخوا له هغه چې تاسې خپلې سترګې له هغه ځني ځان ته واړوئ؛ زه به هغه تخت دلته پخوا له طرفة العين ځني در حاضر كړم.

فَلَمَّا رَاٰهُ مُسْتَقِرًّا عِنْدَهٗ قَالَ هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّیْ ۫ لِیَبْلُوَنِیْۤ ءَاَشْكُرُ

نو كله چې وليد (سُليمان) دغه (تخت) قرار پروت په نزد د ده؛ نو ويې ويل: دغه (ژر راوړل د تخت) له فضله (احسانه) د رب ځما دى، لپاره د دې چې وازمويي ما چې آيا زه شكر كوم (پر نعمتونو د الله).

**تفسير:** يعنې دغه په ظاهري اسبابو سره نه دى، د الله تعالى فضل دى چې ځما رفيق دغه درجې ته رسېدلى دى، چې ترې داسې كرامات ظاهرېږي، او كله چې د ولي او بالخاصه د صحابي كرامت د هم هغه نبي معجزه او د ده د اتباع ثمره وي؛ نو ځكه پر سُليمان عليه السلام هم د هغه شُكران عائد كېږي.

اَمْ اَكْفُرُ ؕ وَ مَنْ شَكَرَ فَاِنَّمَا یَشْكُرُ لِنَفْسِهٖ ۚ وَ مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ رَبِّیْ غَنِیٌّ كَرِیْمٌ ﴿۴۰﴾

يا ناشكري (كُفران) كوم؟ او هر څوك چې شكر كوي؛ پس بېشكه همدا خبره ده چې شُكر كوي خپل ځان ته (ځكه چې پرې د نعمتونو دوام او تزييد كېږي)، او هر چا چې ناشُكري وكړه (كفران كوي)؛ نو بېشكه رب ځما غني بې پروا دى (له شكر او له هر څيزه) كرم والا (څښتن - خاوند د سخاوت دى پر مستحقانو د انعام).

**تفسير:** يعنې د شُكر ايستلو نفع شاكر ته رسېږي، چې په دنيا او آخرت كې به مزيد انعامات پرې مبذول كېږي، كه ناشكري وكړي؛ نو الله ته به څه ضرر او نقصان ونه رسوي، ځكه چې الله تعالى د داسې شكر ايستلو څخه قطعًا بې پروا او بالذات كامل الصفات او منبع الكمالات دى، ځمونږ له كُفرانه د ده په كماليه صفاتو كې هيڅ نقص او كمى نه راځي، دغه هم د الله تعالى لُطف او كرم دى، چې ناشكرانو ته سمدلاسه سزا نه وركوي، نو د داسې كريم ناشكري كوونكى سړى په انتهايي درجه بې حيا او احمق دى.

قَالَ نَكِّرُوْا لَهَا عَرْشَهَا نَنْظُرْ اَتَهْتَدِیْۤ اَمْ تَكُوْنُ مِنَ الَّذِیْنَ لَا یَهْتَدُوْنَ ﴿۴۱﴾

وويل (سُليمان) چې نا آشنا (او په بل شان او شكل كړئ) تاسې دغې (بلقيس) ته تخت د دې، چې وګورو چې آيا پېژني يې يا كېږي له هغو كسانو چې نه يې پېژني.

**تفسير:** يعنې د تخت رنګ او وضعيت يې تبديل كړ، او د هغه شكل او هيئت يې وګرځاوه، چې د هغه په ليدلو بلقيس په اسانۍ سره ونشي پوهېدى، په دې د بلقيس د عقل او فهم ازموينت او امتحان مقصود وو، چې د هدايت استعداد په دې كې تر كوم ځاى پورې شته.

فَلَمَّا جَآءَتْ قِيلَ أَهَٰكَذَا عَرْشُكِ ۖ قَالَتْ كَأَنَّهُۥ هُوَ ۚ

نو کله چې راغله (بلقيس تخت يې هلته وليد)، وويل شو (ورته) آيا همداسې دی تخت ستا؟ نو وويل (بلقيس) لکه چې دا هم هغه دی.

تفسير: ويې نه ويل چې: هو ! هم هغه دی، او نه يې بالکل نفي وکړه، څه يې چې حقيقت وو؛ هغه يې صاف ظاهر کړ، چې تخت خو هم هغه دی، ليکن په اوصاف کې يې څه فرق او توپير (تفاوت) راغلی دی، او کله چې دغه فرق دومره مهم او معتدّبه نه دی؛ نو ځکه ويلی شي لکه چې هم هغه دی.

وَأُوتِينَا ٱلْعِلْمَ مِن قَبْلِهَا وَكُنَّا مُسْلِمِينَ ﴿٤٢﴾

او راکړی شوی وو مونږ ته علم (په وحدت د رحمان او نبوّت د سُليمان) پخوا له دې (معجزې کله چې هُدهد ستا ليک راوړ)، او وو مونږ مسلمانان (غاړه ايښودونکي حکم ستا ته).

تفسير: يعنې مونږ ته لا له پخوا څخه دغه خبره معلومه وه، چې سُليمان عليه السلام تش يو باچا نه دی، بلکه ورسره د الله تعالی يو مقرّب بنده هم دی، نو ځکه مونږ د اطاعت او تسليم او انقياد لپاره اختيار کړه.

وَصَدَّهَا مَا كَانَت تَّعْبُدُ مِن دُونِ ٱللَّهِ ۖ إِنَّهَا كَانَتْ مِن قَوْمٍ كَٰفِرِينَ ﴿٤٣﴾

او منع کړه (الله په توفيق خپل) دا له (عبادت د) هغه څيز چې وه دا چې عبادت يې کاوه غير له الله، بېشکه چې دا وه (پخوا) له (هغه) قومه چې کافران وو.

تفسير: يعنې الله تعالی، يا سُليمان عليه السلام د الله تعالی په حکم ملکه بلقيس د لمر او نورو شيانو له عبادت څخه ستنه (منع) کړه، چې په هغه کې دا سره د خپل قوم مبتلا وه، يا يې دا مطلب چې د سليمان عليه السلام په خدمت کې د حاضرېدلو تر وخته پورې چې د اسلام اظهار يې په علانيه ډول سره نه وو کړی، د هغه سبب دا وو چې د باطلو معبودانو خيال او د کفّارو صحبت او تقليد دا يې له داسې کولو څخه منع کړې وه، کله چې د نبيّ الله په ملاقات او زيارت مشرفه شوه؛ هغه ممانعت له منځه ورک شو، که نه د سليمان عليه السلام د صداقت اجمالي علم دې ته لا له پخوا څخه حاصل وو.

قِيلَ لَهَا ٱدْخُلِى ٱلصَّرْحَ ۖ فَلَمَّا رَأَتْهُ حَسِبَتْهُ لُجَّةً وَكَشَفَتْ عَن سَاقَيْهَا ۚ قَالَ إِنَّهُۥ صَرْحٌ مُّمَرَّدٌ مِّن قَوَارِيرَ ۗ قَالَتْ رَبِّ إِنِّى ظَلَمْتُ نَفْسِى وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَٰنَ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٤٤﴾

وويلی شو دغې (بلقيس) ته چې: ننوځه دې بنګلې ته، پس کله چې وليده (بلقيس) دا (ښيښنه)؛ نو ګمان يې پرې وکړ د ژورو اوبو، او پورته يې کړه (پاينڅه) له دواړو پنډيو خپلو، نو وويل (سليمان) بېشکه دغه (اوبه نه دي) يوه بنګله ده په ځمکه هواره ښويه (جوړه شوې) له ښيښو نه، وويل (بلقيس): ای ربه ځما ! بېشکه ما ظلم کړی دی پر ځان خپل، او اسلام مې راوړی دی سره له سُليمانه خاص (هغه) الله ته چې رب (پالونکی) د عالميانو دی.

تفسير: يعنې له اوبو څخه د پورې وتلو په نيت يې خپلې پاينڅې پورته کړې، لکه چې عمومي قاعده ده، چې که د اوبو د ژوروالي اندازه په پوره ډول معلومه نه وي؛ نو له اوبو څخه پورې وتونکی ړومبی د خپلو پاينڅو په پورته کولو شروع کوي.

سُليمان عليه السلام پخپله سلام خانه کې ناست وو، چې هغه د تيرو (ګټو) په ځای په ښيښو فرش شوې وه، دغه صافې او پاکې ښيښې له لرې داسې ښکارېدې لکه چې د اوبو لوی حوض وي، او ممکن دي چې له دغو ښيښو لاندې به واقعي اوبه هم وې، يعنې حوض يې په ښيښو سره پټ کړی وي، دې په اوبو کې د ګډېدلو لپاره خپل پنډې لوڅې (بربنډې) کړې، سُليمان عليه السلام پرې غږ وکړ چې: دغه د ښيښې فرش دی اوبه نه دي، بلقيس ته خپل د عقل قصور او د ده د عقل کمال ور معلوم شو، او په دغه باندې ښه وپوهېده، چې په ديانت هم پر هغو اسرارو چې دی پوهيږي؛ هغه هم صحيح دي، او دغه هم ورښکاره شوه چې پر هغو سازونو او سامونونو او وسائلو چې دغه قوم مغرور وو، او پرې نازېدل؛ دلته له هغه څخه ډېر سامونونه موجود وو، ګواکې سُليمان عليه السلام دوی ته تنبيه ورکړه، چې د لمر او د ستوريو پر ځلېدلو غولېدل او هغوی ته د معبود نسبت ورکول همداسې دي، لکه چې انسان د ښيښې په ځلېدلو وغوليږي، او د اوبو ګمان پرې وکړي.

کله چې ملکه بلقيس پر خپل قصور وپوهېده؛ نو وی يې ويل: ای ربه ځما ! بېشکه ما ظلم کړی دی پر خپل ځان، او اسلام مې راوړی دی سره له سليمانه خاص هغه الله ته چې رب د عالميانو دی، يعنې يا الله ! زه ستا منونکې يم، او د سليمان عليه السلام دين او طريقه اختياروم، تر اوسه پورې مې پر خپل ځان باندې ډېر ظلم کړی دی، چې په شرک او کفر کې مبتلا وم، اوس له هغه څخه توبه کوم، او ستا د ربوبيت د دربار په طرف رجوع کوم !.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ فَإِذَا هُمْ فَرِيقَانِ يَخْتَصِمُونَ ﴿٤٥﴾

او خامخا په تحقيق لېږلی وو مونږ ثموديانو ته (قومي) ورور د دوی صالح (چې ووايه ثموديانو ته) داسې چې عبادت کوئ تاسې خاص د الله، پس ناڅاپه دوی دوه فرقې وې (مؤمن او کافر) چې سره يې جګړې کولې.

تفسير: يعنې يوه ايمان لرونکې او يوه منکره، لکه مکي والو چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د راتګ په وخت کې پخپلو منځونو کې جګړې سره کولې، د ثموديانو د جګړې لږ څه تفصيل د «الأعراف» سورت په (۱۰) رکوع کې پر دغو آيتونو ﴿قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا مِن قَوْمِهِ لِلَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِمَنْ آمَنَ﴾ کې تېر شوی دی.

قَالَ يَٰقَوْمِ لِمَ تَسْتَعْجِلُونَ بِالسَّيِّئَةِ قَبْلَ الْحَسَنَةِ ۖ لَوْلَا تَسْتَغْفِرُونَ اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٤٦﴾

وويل (صالح) ای قومه ځما ! ولې جلتي کوئ تاسې په بدۍ (نزول د عذاب) پخوا له نېکۍ (توبې)، ولې مغفرت نه غواړئ تاسې له الله (په ايمان او توبه) لپاره د دې چې پر تاسې رحم وکړ شي؟.

تفسير: صالح عليه السلام دوی ډېر په هر ډول سره وپوهول، نو کله چې دوی پرې ونه پوهېدل؛ بالآخر يې دوی له عذابه ووېرول، چې د هغه په ځواب کې هغوی داسې وويل: ﴿وَقَالُوا يَا صَالِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِن كُنتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ يعنې که ته پخپلې دغې خبرې کې رښتين يې؛ نو ولې د الله تعالی عذاب پر مونږ نه نازليږي؟ او د څه لامله په کې ځنډ (تأخير) او ډيل واقع کيږي؟ صالح عليه السلام وويل: ای کمبختانو ! ولې د ايمان او توبې او د نېکۍ لار نه اختياروئ؟ چې په دنيا او آخرت کې ستاسې په کار درشي، او د څه له سببه بالعکس بدي او عذاب ژر غواړئ؟ دغه عذاب او بدي چې په خپل وخت کې پر تاسې واقع شي؛ نو ستاسې دغه ګرد شورماشور به پای (آخر) ته ورسيږي، اوس وخت دی چې تاسې له خپلو ګناهونو څخه توبه وباسئ، او خپل ځان د الله تعالی له عذابه محفوظ او مصئون کړئ !، تاسې ولې توبه او استغفار نه کوئ څو الله تعالی د عذاب او زحمت په ځای ثواب او رحمت در مرحمت کړي؟.

قَالُوا اطَّيَّرْنَا بِكَ وَبِمَن مَّعَكَ

وويل (ثموديانو) چې بدفالي نيولې ده مونږ په تا او په هغه چا چې له تا سره دي (له مؤمنانو).

**تفسير:** يعنې اى صالحه ! له كله راهيسې چې ستا قدم ځمونږ په خاوره كې اېښود شوى دى، او تا پخپلو دغو خبرو شروع كړېده؛ پر مونږ راز راز مصائب او مصاعب را نازل شوي دي، او په هر كور كې جنګ او جګړې نښتې دي.

قَالَ طَائِرُكُمْ عِندَ اللَّهِ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تُفْتَنُونَ ﴿٤٧﴾

وويل (صالح) چې: بدفالي د تاسې په نزد د الله ده (چې دركوي يې په بدل د كفر د تاسې)، بلكه تاسې يو قوم يئ چې ازمويلى كېږئ (كله په راحت او كله په زحمت).

**تفسير:** يعنې دغه مصاعب او سختۍ ځما لامله پر تاسې نه دي راغلي، بلكه د دغو سبب ستاسې هغه بد قسمتي ده چې الله تعالى ستاسې د شرارتونو او بدو اعمالو لامله پر تاسې مقررې او مقدّرې كړې دي.

وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ﴿٤٨﴾ قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ أَهْلِهِ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ﴿٤٩﴾

او وو په ښار (د ثموديانو) كې نهه سړي (غټ شرير) چې فساد به يې كاوه په ځمكه (د حجر) كې، او نه به يې كوله اصلاح. وويل (ثموديانو) حال دا چې قسمونه يې خوړلي وو په الله چې: خامخا د شپې به ولويږو پر دغه (صالح) او اهل (عيال او امّت) د ده، (او وژنو به يې)، بيا به خامخا ووايو مونږ هرومرو ولي د ده ته (كه د قتل دعوى راباندې وكړي؛) چې: نه وو ليدلى مونږ ځاى د هلاكت د اهل د ده (نو نه يو خبر چې چا وژلي دى)، او ببشكه چې مونږ خامخا له صادقانو يو (په دعوى خپله كې).

**تفسير:** دغه نهه سړي ممكن دي چې د نهو ټبرو سرداران او مشران وي، چې د دوى كار په ملك كې پر ته (علاوه) له فتنې او فساد او خرابۍ اچولو څخه بل هيڅ شى نه وو، د اصلاح او درستي په طرف به هيڅكله دوى خپل مخ نه اړوه، په معظمه مكه كې هم د كفّارو نهه مشران وو، چې تل به يې د اسلام په مخالفت او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په معاندت كې سعي او مجاهدت كاوه، او نورو مفسّرانو د هغوى نومونه هم ليكلي دي، دغو د صالح عليه السلام د قوم نهو غټو اشرارو پخپلو منځونو كې معاهده او قسمونه سره يادل كړل؛ چې ګرد به سره يو ځاى كيږي، او د صالح عليه السلام په كور به ورننوځي، او دى به سره له ګردو كور وكهوله له يوه مخه وژني، بيا كه څوك د ده د وينې دعوادار پيدا شي؛ نو مونږ به ورته ووايو چې: مونږ له دغه داړې او د ده له وژونكي څخه نه يو خبر، او مونږ رښتيا وايو چې مونږ د ده د كور دغه تباه او وران وضعيت په خپلو سترګو نه دى ليدلى.

وَمَكَرُوا مَكْرًا وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿٥٠﴾ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٥١﴾ فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً بِمَا ظَلَمُوا إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٥٢﴾ وَأَنجَيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿٥٣﴾

او فريب وكړ دوى په فريب كولو سره او فريب وركړ مونږ په فريب وركولو سره، حال دا چې دوى پرې نه پوهېدل. پس وګوره چې څرنګه شو عاقبت د مكر (انجام د فريب) د دوى، ببشكه

چې مونږ هلاک کړل دغه (نهه واړه) او قوم د دوی ټول (په غږ د جبريل). پس دغه دي کورونه د دوی (ورته وګورئ) چې وران تش پراته دي، په سبب د دې چې ظلم (شرک) کاوه دوی، بېشکه په دغه (اهلاک د ثموديانو) کې خامخا لوی دليل (د قدرت او عبرت) دی لپاره (د هغه) قوم چې پوهيږي (په خير او شر خپل، او ترې عبرت اخلي). او نجات ورکړ مونږ (له دغه عذابه) هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی وو، او وو دوی چې ويرېدل (له الله او ځانونه يې ساتل له شرکه او معاصيو).

تفسير: د دوی مکر خو همدغه د دروغو ترون وو، او د دوی د غه مکر په مقابل کې الله تعالی دوی ته ښه ډيل او مهلت ورکړ، چې په زړه پورې خپلو شرارتونو ته تکميل ورکړي، څو د عذاب عظيم په مستحق کېدلو کې هيڅ حجّت او عذر پاتې نشي، دوی داسې ګڼل چې ګواکې مونږ صالح عليه السلام له منځه لرې کوو، او له دې نه نه وو خبر چې په واقع سره دوی پخپلو دغو اعمالو سره خپل بېخ وباسي، او په خپل لاس خپل ځان له منځونو لرې کوي، موضح القرآن داسې ليکي: «د دوی د اهلاک اسباب خپل د تکميل حد ته رسيدلي وو، ځکه څو شرارت خپل د تکميل حد ته ونه رسيږي؛ اهلاک نه واقع کيږي».

وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِۦٓ أَتَأْتُونَ ٱلْفَٰحِشَةَ وَأَنتُمْ تُبْصِرُونَ ﴿٥٤﴾ أَئِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ ٱلرِّجَالَ شَهْوَةً مِّن دُونِ ٱلنِّسَآءِ ۚ بَلْ أَنتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ ﴿٥٥﴾

او (ياده کړه قصه د) لوط کله چې ويې ويل قوم خپل ته: آيا راځئ تاسې فاحشې (قبيح کار د لواطت) ته حال دا چې وينئ تاسې (يو بل په دې بد عمل کې چې څومره مردار کار دی؟) آيا تاسې خامخا راځئ سړيو ته له جهته د شهوت غير له ښځو (چې د شهوت د دفعې لپاره دي) بلکه تاسې يو قوم يئ ناپوهان (له قبح د عواقبو خپلو).

تفسير: يعنې که تاسې نه پوهېږئ چې د دغې بې حيايي آخره خاتمه څه کيږي؛ نو په انتهايي درجه جاهلان او ناپوهان يئ.

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِۦٓ إِلَّآ أَن قَالُوٓا۟ أَخْرِجُوٓا۟ ءَالَ لُوطٍ مِّن قَرْيَتِكُمْ ۖ إِنَّهُمْ أُنَاسٌ يَتَطَهَّرُونَ ﴿٥٦﴾

پس نه وو جواب د قوم د دغه (لوط بل شی) مګر همدا وو چې وبه ويل دوی (يو بل ته): وباسئ (وشړئ) تاسې خپلخانه د لوط له دې ښاره خپله (چې سدوم دی)، بېشکه دوی داسې سړي دي چې ځانونه پاک ساتي (له کارونو څمونږ او بد يې ګڼي).

تفسير: يعنې دغه لوط چې خپل ځان لوی، پاک، صاف او صفا ساتي؛ نو بيا څمونږ له ناپاکانو سره څه کار او غرض لري؟.

فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَهْلَهُۥٓ إِلَّا ٱمْرَأَتَهُۥ قَدَّرْنَٰهَا مِنَ ٱلْغَٰبِرِينَ ﴿٥٧﴾ وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهِم مَّطَرًا ۖ فَسَآءَ مَطَرُ ٱلْمُنذَرِينَ ﴿٥٨﴾

پس نجات ورکړه مونږ دغه (لوط) ته او اهل د دغه (لوط) ته مګر ښځه د ده چې مقدره کړې وه مونږ هغه (کافره ښځه په ازل کې) له باقي پاتې کيدونکيو (په عذاب کې). او ووراوه مونږ پر دوی باران (د تيږو ـ ګټو چې هلاک شول پرې) پس بد باران د ويرول شويو (په عذاب سره) باران د دوی دی.

**تفسير:** يعني هغوى يې تباه او هلاك كړل، او لوط عليه السلام ته يې سره د ده د مسلمانانو ملګريو نجات وركړ، ليكن د لوط عليه السلام ښځه چې د دغو اشرارو كفّارو سره يې مرستې كولې؛ هغه هم له هم هغو هلاك كېدونكيو سره پاتې شوه، او په دغو ګردو مجرمينو باندې پاک الله له آسمانه تيږي (ګټې) اوورولې، او دغه ښار يې له يوه مخه پر بل مخ واړاوه.

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلٰمٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى ۭ ءٰۗاللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ ۝۵۹

ووايه (اى محمده !) چې ټولې ثناوې ستاينې (صفتونه) خاص الله لره دي (په نصرت د ابرارو، او ذلّت د كفارو)، او سلام دى پر بندګانو د دغه (الله) هغه (بندګان) چې غوره كړي دي دوى (الله پر ټولو مخلوقاتو)، آيا الله خير بهتر غوره دى كه هغه بتان چې دوى يې شريكان كوي (له الله سره؟ بلكه الله بهتر دى !).

**تفسير:** وروسته د قصصو له فراغه: ﴿ءٰۗاللّٰهُ خَيْرٌ اَمَّا يُشْرِكُوْنَ﴾ يې د توحيد بيان فرمايلى دى، دغه الفاظ د خطبې په ډول تعليم فرمايي، چې ښايي پخوا له بيانه وي، «موضح القرآن» ليكي: د الله تعالى تعريف كول، او په انبياوو سلام لېږل، او وروسته له هغه په بله خبره شروع كول يې خلقو ته وروښودل، ځينې مفسّرين وايي: د الله تعالى هغه كمالات او احسانات چې پاس د قصصو په منځ كې مذكور شول؛ پر هغو ځمونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته حكم وشو، چې د الله تعالى حمد او ثناء ووايي، او شكر پر ځاى راوړي، او پر هغو مقبولو بندګانو چې د ځينو د هغو ذكر پاس وكړ شو؛ سلام ولېږي، له دې ځايه د توحيد وعظ شروع كړى شوى دى، يعنې د پاس قصصو د اورېدلو او په تكويني آيتونو باندې د فكر او غور كولو څخه وروسته تاسې پخپله دغه راوښيئ، چې د دغه «وحده لا شريك له» الله تعالى منل خير، بهتر، غوره، نافع او معقول دي؟ يا د ده په الوهيت كې د هغو خوارو عاجزانو او ناتوانو مخلوقاتو معبود درول؟ او له الله تعالى سره يې شريك ګرځول؟ اوس دغه مسئله دومره سخته او مشكله نه ده، چې د هغې په فيصله كولو كې څه تدقيق او ځنډ (تأخير) كولو ته څه حاجت او ضرورت پاتې وي، خو بيا هم د زيات تذكير او تنبيه په غرض وروسته له دې نه د الله تعالى ځينې داسې شئون او صفات بيانېږي چې د ده پر توحيد او تقدّس دلالت كوي، او ځينې هغه خير او نفعې شمېرل كيږي، چې د الله تعالى د رحمت او د فضـل آثار په هغو كې له ورا ښكاري، نو فرمايي چې:

اَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَاَنْزَلَ لَكُمْ مِّنَ السَّمَاۗءِ مَاۗءً ۚ فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ حَدَاۗىِٕقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ ۚ مَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُنْۢبِتُوْا شَجَرَهَا ۭ

بلكه هغه څوک (بهتر دى) چې پيدا كړي يې دي اسمانونه او ځمكه، او نازلې كړې يې دي لپاره د تاسې له (طرفه د) اسمان اوبه، پس زرغون كړل مونږ په دغو (اوبو) سره باغونه خاوندان د رونق (او ښايست)، نه دى كېدونكى له تاسې دا (كار) چې زرغونې كړئ تاسې ونې د هغو.

**تفسير:** آيا دغه الله موصوف په دغو صفاتو بهتر دى كه معبودان د تاسې چې هيڅ نشي كولى؟ بلكه له سره د ونو زرغونول ستاسې په اختيار كې نه دي، دا لا څه چې له هغه ځينې مېوې او ثمرات او نور شيان هم راوباسئ.

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ۭ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَّعْدِلُوْنَ ۝۶۰

آيا شته بل معبود برحق له الله سره؟ (نه نشته)، بلكه دغه (مشركان) يو داسې قوم دى چې ځنګ كوي (له توحيده).

تفسیر: یعنې په دې باندې ګرده دنیا پوهیږي، او پخپله همدغه مشرکان یې هم مني، چې د ځمکې او اسمان پیدا کول، د باران (وریا) ورول، د ونو ـ نباتاتو زرغونول غیر له الله تعالی څخه د بل چا کار نه دی، لکه چې د لوی قرآنکریم په بل ځای کې د مشرکانو داسې اقرار او اعتراف هم مذکور دی، بیا وروسته له دې نه چې تر دې ځای پورې ورسېدئ، نو بیا ولې له سمې لارې څخه کاږه کېږئ؟ کله چې ماسوا الله څخه بل داسې یو ذات نشته، چې د دغو ګردو (ټولو) مخلوقاتو انتظام او تدبیر وکړی شي، یا د کوم شي مستقل اختیار ولري؛ نو بیا د الله تعالی په ألوهیت او معبودیت کې څرنګه بل څوک ورسره شریکېدی شي؟ «عبادت» د انتهایي تذلل نوم دی، نو دغسې عبادت هغه ذات ته لایق دی، چې په انتهایي درجه کامل او بااختیاره وي، د کوم ناقص یا عاجز مخلوق له لوی خالق سره په معبودیت کې برابرول، انتهایي ظلم، ضد او عناد دی.

أَمَّن جَعَلَ الْأَرْضَ قَرَارًا وَجَعَلَ خِلَالَهَا أَنْهَارًا وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ

بلکه هغه څوک (بهتر دی) چې ګرځولې یې ده ځمکه ځای د قرار (آرام)، او ګرځولي یې دي په منځ د دغې ځمکې کې نهرونه (سیندونه، رودونه، ویالې د اوبو)، او ګرځولي یې دي دغې (ځمکې) ته محکم لوړ (اوچت) غرونه.

تفسیر: چې په کې ایښي دي لکه میخونه او بارونه تر څو ودرېږي، ونه خوځي، یعنې د انسانانو او حیواناتو دېره ځای دی، چې په آرامی سره پرې ژوندون کوي، او له دې حاصلاتو او پیداوار څخه ګټه (فائده) او نفعه اخلي.

وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا

او ګرځولې یې ده په منځ د دوو بحرونو (خواږه او تروه) کې پرده (چې سره ګډ نشي).

تفسیر: آیا دغه الله موصوف په دغه صفاتو بهتر دی که معبودان د تاسې چې هیڅ نشي کولی؟ د دې تحقیق پر دغه آیت لیکلی شوی دی: ﴿وَهُوَ الَّذِي مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ هَٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ وَهَٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَجَعَلَ بَيْنَهُمَا بَرْزَخًا وَحِجْرًا مَّحْجُورًا﴾ (۱۹ جزء د الفرقان سورت (۵) رکوع، (۵۳) آیت) کې دې ولوستل شي.

أَإِلَٰهٌ مَّعَ اللَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٦١﴾

آیا شته بل معبود برحق له الله سره؟ (نه ! نشته) بلکه اکثر د دغو (مشرکانو) نه پوهیږي.

تفسیر: په توحید چې ایمان نه راوړي، یعنې آیا بل کوم بااختیاره ذات شته؟ چې دغسې کار وکړی شي؟ او پر دغه بناء د معبود ګرځېدلو لایق شي؟ کله چې نشته؛ نو معلوم شو چې دغه مشرکین محض دجهالت او ناپوهۍ لامله د شرک او مخلوق پرستی په ژوره کنده کې لویدلي دي، او لا پسې د جهل په سوړو کې ننوځي.

أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ

بلکه هغه څوک (بهتر دی) چې قبلوي سوال د عاجز (بېکس بې بس) کله چې وبولي دغه (مضطر) هغه (الله أکبر)، او لرې کوي بدي سختي.

تفسیر: یعنې کله چې الله تعالی اراده وفرمایي؛ نو د بېکسانو او ناقرارانو او بې وځلو دعاوې او نارې اورې، سختې ترې لرې کوي، لکه چې (په ۷ جزء د الأنعام سورت په (۴) رکوع (۴۱) آیت کې) یې فرمایلي دي: ﴿فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِنْ شَاءَ﴾ ګواکې الله تعالی دعاء هم له عادي اسبابو څخه یو سبب ګرځولې ده، چې پرې د مسبب ترتّب د الله تعالی په مشیت د شروطو پر استجماع او د موانعو پر ارتفاع کېږي، علامه طیبي رحمه الله او نورو ویلي دي چې: په دغه آیت کې

مشرکينو ته تنبيه ده، چې د سختيو مصائبو او شدائدو په وخت کې تاسې هم مضطرب کېږئ، او همدغه پاک الله ته دعا او نارې کوئ، او نور معبودان ستاسې له ياده وځي، نو بيا د فطرت او ضمير دغه شهادت مو ولې د امن او اطمينان په وخت کې له تاسې هيريږي.

وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْأَرْضِ

او ګرځوي (الله) تاسې لره خليفګان په ځمکه کې (په ځای د تېرو خلقو).

تفسير: آيا دغه الله موصوف په دغو صفاتو سره بهتر دی که معبودان د تاسې چې هيڅ نه شي کولی؟ يعنې يو قوم او نسل له ځمکې څخه پورته کوي، او د دوی په ځای بل قوم او نسل ودانوي، چې دوی پر ځمکه د مالکيت او سلطنت له حيثه تصرّفات کوي.

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿۶۲﴾

آيا شته بل معبود برحق له الله سره؟ (نه، نشته) لږ شانته پند قبلوئ (او غور چلوئ تاسې).

تفسير: يعنې که تاسې په پوره ډول سره فکر کولی؛ نو د لرې تللو لپاره هيڅ يو ضرورت نه وو پاتې، همدغو خپلو حوائجو او ضرورياتو او د اقوامو همدغه تبديل او تغير ته به مو کتل، نو پخپله به پوهېدئ چې د هغه قدير ذات په لاس کې چې د دغو امورو قبضه او اختيار دی؛ يواځې هم هغه ذات د عبادت وړ او مستحق دی.

اَمَّنْ يَّهْدِيكُمْ فِي ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُّرْسِلُ الرِّيٰحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ

بلکه هغه څوک (بهتر دی) چې لاره ښيي تاسې ته (په ستوريو سره) په تيارو د بر (بيديا) او (په تيارو) د بحر (درياب) کې، او هغه (څوک بهتر دی) چې رالېږي بادونه زېری ورکوونکي په مخ کې د رحمت (باران) خپل.

تفسير: آيا دغه الله موصوف په دغو صفاتو سره بهتر دی؟ که معبودان د تاسې چې هيڅ نشي کولی؟ الله تعالی د وچې او د سيند په تيارو کې د ستوريو په وسيله ستاسې لارښوونه کوي، اعم له دې نه چې بلاواسطه وي که د قطب ښوونکي او نورو آلاتو په واسطه وي، او پخوا د رحمت له بارانه هواوې او بادونه چلوي، او په هغو سره د باران د راتګ زېری ورکوي.

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ تَعٰلَى اللّٰهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۶۳﴾

آيا شته بل معبود برحق له الله سره؟ (بلکه نشته) ډېر لوی دی، ډېر پورته دی الله له هغو (شيانو) چې شريکوي يې دغه (مشرکان له الله سره).

اَمَّنْ يَّبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهٗ

آيا هغه څوک چې له ړومبی يې پيدا کړي دي خلق (له نطفې په ارحامو کې)، بيا به يې ژوندي کوي (بعد الموت په قيامت کې).

تفسير: ګرد خلق دغه قبلوي چې ابتدائي تخليق د الله تعالی کار دی، وروسته له مرګه بيا ژوندي پاڅېدل هم پر هم دغه قياس کړئ، د «بعث بعد الموت» منکرين هم هم دغومره پوهيږي چې که بالفرض وروسته له مرګه بيا ژوندون وي؛ نو هغه کار هم د هم هغه ذات دی چې اول ځلي يې پيدا کړي دي.

وَمَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ

او هغه څوک چې رزق روزي درکوي تاسې ته له (طرفه د) اسمانه (په باران) او له ځمکې (په محصولاتو يې، آيا دغه الله موصوف په دغو صفاتو بهتر دی؟ که معبودان د تاسې چې هيڅ نشي کولی؟).

تفسير: يعنې هغه کوم ذات دی چې د سماوي او ارضي اسبابو په وسيله سم له خپله حکمته سره تاسې ته روزي دررسوي؟

ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ ؕ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۶۴﴾

آيا شته بل معبود له الله سره؟ (بلکه نشته) ووايه (ای محمده ! دوی ته) راوړئ تاسې بُرهان (سند) خپل (په دې چې غير له الله همداسې کولی شي) که چېرې يئ تاسې صادق (رښتين په دې دعوی خپله کې).

تفسير: يعنې سره د دغو صافو، ښکاره دلائلو له اورېدلو بيا تاسې د الله تعالی وحدانيت او د کفر او شرک نقصان او قباحت نه تسليموئ، نو هر هغه دليل چې تاسې يې د خپلې دغې باطلې دعوی په ثبوت کې لرئ؛ هغه راوړاندې کړئ !، څو د هغې له مخې ستاسې دروغ او رښتيا ښکاره شي، مگر له هغوی سره دليل او برهان چېرې دی؟ محض د ړندو په تقليد رهي (روان) دي: ﴿وَمَنْ يَّدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهٗ بِهٖ فَاِنَّمَا حِسَابُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ﴾ (۱۸ جزء د «المؤمنون» سورت (۶) رکوع، (۱۱۷) آيت).

قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) نه پوهيږي هغه څوک چې په اسمانونو کې دي، او په ځمکه کې دي (له پرښتو او انسانانو) په غيبو امورو باندې مگر (عالم دی پر غيبو) الله.

تفسير: دغه آيت د سابق مضمون تکميل او د لاحق مضمون تمهيد دی، د دې جزء له ابتداء څخه تر دې ځايه پورې د الله تعالی د تام قدرت، عام رحمت، او د کامل ربوبيت بيان وو، يعنې هر کله چې الله تعالی په دغو صفاتو او شئونو کې متفرد دی؛ نو ښايي چې په الوهيت او معبوديت کې هم متفرد وي، په دغه آيت کې په الوهيت له بله حيثيته استدلال کاوه شي، يعنې معبود به هم هغه ذات کېدی شي، چې له تام قدرت سره محيط او کامل علم هم ولري، او دا هغه صفت دی چې په ځمکه او اسمان کې هيڅ يو مخلوق ته نه دی حاصل، او د هم هغه رب العزّت سره مخصوص دی، پس په دغه اعتبار سره هم د معبوديت استحقاق له هم هغه واحد ذات لپاره ثابت شو.

وَمَا يَشْعُرُوْنَ اَيَّانَ يُبْعَثُوْنَ ﴿۶۵﴾

او نه پوهيږي دغه (کفار) چې کله به بيا ژوندي راپاڅولی شي دوی.

تفسير: يعنې پر قيامت يقين نه لري، او وايي چې قيامت کله راځي؟ چې د هغه په اثر مړي بيا ژوندي کيږي، پر دغه هيڅوک نه دي خبر، ړومبی د مبدأ ذکر کېده، له دې ځايه وروسته د معاد ذکر شروع کيږي.

بَلِ ادّٰرَكَ عِلْمُهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ ۫ بَلْ هُمْ فِيْ شَكٍّ مِّنْهَا ۫ بَلْ هُمْ مِّنْهَا عَمُوْنَ ﴿۶۶﴾

بلکه ستړی ستومان، او له کار لویدلی دی علم د دوی په (کار د) آخرت کې، بلکه دغه (کفّار) په شک کې دي له دغه (قیامت)، بلکه دغه (کفّار) له دغه (قیامت) نه ړانده دي (د زړه په سترګو چې پرې باور نه کوي).

**تفسیر:** یعنې ډېر عقل او فکر یې وچلوه، او له ډېر فکر وهلو څخه بیخي ستړي او ستومان شول، خو سره له هغه هم د آخرت په حقیقت او کیفیت ونه پوهېدل، کله د هغه په نسبت په حیرت شول، کله په شک کې ترې ولوېدل، او کله ترې منکران شول. (موضح القرآن).

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوٓا۟ أَءِذَا كُنَّا تُرَٰبًا وَءَابَآؤُنَآ أَئِنَّا لَمُخْرَجُونَ ﴿٦٧﴾ لَقَدْ وُعِدْنَا هَٰذَا نَحْنُ وَءَابَآؤُنَا مِن قَبْلُ إِنْ هَٰذَآ إِلَّآ أَسَٰطِيرُ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿٦٨﴾

او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي (او د زړه سترګې يې ړندې دي): آيا کله چې شو مونږ خاورې او پلرونه څمونږ (هم خاورې شي)؛ آيا خامخا به مونږ رايستلی شو (ژوندي له څمکې جزاء ته). خامخا په تحقيق وعده کړی شوې ده له مونږ سره د دې (بعث بعد الموت، هم) له مونږ سره، او هم له پلرونو څمونږ سره له دې (وعدې د محمد نه) پخوا (د نورو انبياوو له خوا)، نه دي دغه خبرې (بل شی) مګر ليکلي قصې (باطلې دروغ افسانې) دي د ړومبنيو (خلقو).

**تفسیر:** يعنې پخوا له دې نه څمونږ له پلرونو سره هم داسې وعدې شوې وې، دغه ده چې عيناً نن له مونږ سره هم هغسې خبرې او اترې دغه رسول کوي، ليکن سره د دومره قرنو او پېړيو د تېرېدلو مونږ ته تر نن ورځې پورې دغه خبره نشوه څرګنده او نه مو واورېده چې وروسته له دې نه چې مړي په خاورو کې سره ګډوډ او مخلوط شي، هغه به بيا ژوندي کيږي، لکه چې د پخوا په شان روغ رمټ انسان ترې جوړ او عيان کيږي، او بيا د خپلو اعمالو سزا مومي؟.

قُلْ سِيرُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ فَٱنظُرُوا۟ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُجْرِمِينَ ﴿٦٩﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې وګرځئ تاسې په څمکه (د مکذبينو) کې، پس وګورئ چې څرنګه شو عاقبت (آخره خاتمه) د ګنهګارانو (کافرانو؟ او ترې عبرت واخلئ !).

**تفسیر:** يعنې ډېرو مجرمانو ته په همدغې دنيا کې عبرتناکه سزا ورکړی شوې ده، او د انبياوو عليهم السلام مواعيد پر دوی منطبق ګرځېدلي دي، پر همدغه دې د «بعث بعد الموت» قياس هم بنايي چې وکړی شي، چې باليقين بعث، حساب کتاب، ثواب عقاب، او اخروي عذاب شته، چې ټول ربښتيا دي، او الله تعالی له هغه څخه خبر راکړی دی، او هغه ضرور راتلونکی دی، او دغه لويه کارخانه هم داسې خوشې او بې نتيجې نه پاتې کيږي، او دغه هم امکان نه لري، چې پر دغو ټولو علوي او سفلي موجوداتو داسې کوم عمومي حاکم نه وي، چې حق په حقدار ورسوي، او خپل دغه ګرد رعايا همداسې مهمل پرېږدي، کله چې ټولو مجرمانو ته دلته پوره سزا نه ورکوله کيږي؛ نو يقيني ده چې هرومرو بل کوم ژوندون او جهان شته، چې هلته به هر څوک د خپلو اعمالو نتيجه او سزا او جزاء ومومي، که تاسې پر همدغه خپل تکذيب دوام (ټينګوالی) وکړئ؛ نو هم هغسې چې د نورو مکذّبينو آخره خاتمه او انجام شوی دی؛ ستاسې به هم کيږي.

وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ وَلَا تَكُن فِى ضَيْقٍ مِّمَّا يَمْكُرُونَ ﴿٧٠﴾

او مه خفه کېږه (ای محمده !) پر دوی (چې ستا تکذيب کوي او له ايمانه مخ اړوي)، او مه اوسه په تنګي (د زړه) کې له هغه چې دوی مکر کوي (له تا سره څکه چې زه ستا حافظ او ناصر يم).

**تفسیر:** یعنې ای محمده ! دغه مکذبان د دوی په ښو او بدو په ښه شان سره وپوهوه ! او د آخرې خاتمې تنبیه ورته ورکړه !، وروسته له دغو پوهولو له دوی نه جدا شه !، که دغه خلق حق ونه منې؛ نو تاسې ډېر غمجن، متأسف او مه خفه کېږئ !، او نه د دوی د مکر او فریب او د حق په خلاف له تدبیر کولو څخه زړه تنګه او ملول کېږئ؟ تاسې خو خپل فرض په پوره ډول سره اداء فرمایلی دی، الله تعالی پخپله داسې ضدي او عنادي کسانو ته سزا ورکوي، او هم هغسې چې پخواني مجرمان یې په سزا رسولي دي؛ دوی هم رسوي.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٧١﴾

او وايي دا (کفّار) کله به وي دغه وعده (د نزول د عذاب) که يئ تاسې صادقان (رښتيني په دغې دعوی خپلې کې).

قُلْ عَسَىٰ أَن يَكُونَ رَدِفَ لَكُم بَعْضُ الَّذِي تَسْتَعْجِلُونَ ﴿٧٢﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې نژدې ده چې شي پيوست په تاسې پسې ځينې هغه (عذاب) چې غواړئ یې تاسې په جلتی.

**تفسیر:** یعنې ډېر شورماشور او غوغا مه ننبلوئ !، هغه وعده هرومرو ایفاء کېدونکې ده، او هیڅ لرې نه ده چې د هغې وعدې کومه برخه تاسې ته ډېره نژدې شوې او در پورې نښتې هم وي، لکه چې ډېرې ورځې نه وې تېرې چې پر دوی باندې سخت قحط نازل شو، او هم د «بدر» په غزوه کې د دغه عذاب یوه برخه وررسېده، پاتې شو قیامت کبری؛ د هغه هم ځینې آثار او علائم در ښکاره شوي دي.

وَإِنَّ رَبَّكَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ﴿٧٣﴾

او بېشکه رب ستا خامخا څښتن (خاوند) د فضل (احسان، انعام) دی پر خلقو (چې دوی ژر په ګناهونو نه نیسي)، ولیکن اکثر د دوی شکر نه کوي (په دې نعمت چې د عذاب تأخیر دی).

**تفسیر:** یعنې که الله تعالی پخپل فضل او کرم سره د عذاب په لېږلو کې تاخیر کوي؛ نو لازم وو چې دوی دغه تأخیر غنیمت ګڼلی، او د دغې مهربانۍ په مقابل کې یې شکر ایستی، او د صالح عمل لاره به یې خپلو ځانونو ته غوره کړې وی، لیکن پر خلاف د دې دوی ناشکري کوي، او په خپله خوله عذاب غواړي.

وَإِنَّ رَبَّكَ لَيَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٤﴾ وَمَا مِنْ غَائِبَةٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ
إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٧٥﴾

او بېشکه رب ستا ته خامخا معلوم دي هغه څه چې پټوي یې سینې (زړونه) د دغو (کفارو) او هغه څه چې ښکاره کوي یې دوی. او نشته هیڅ شی پټ پناه (له حوادثو) په اسمان او په ځمکه کې؛ مګر (لیکلی) دی په کتاب ښکاره (لوح محفوظ) کې.

**تفسیر:** یعنې ستاسې ظاهري او باطني اعمال، د زړونو پټې خبرې، نیات، ارادې، د ځمکې او د اسمانونو ډېر زیات پټ اسرار ګرد د الله تعالی په علم کې او د لوح محفوظ په دفتر کې درج دي، هره خبره له هغه سره موافقه واقع کیږي، تلوار کولو یا ځنډ کولو څخه هیڅ یو حاصل او ګټه په لاس نه درځي، هر هغه څیز چې د الله تعالی په علم کې طي شوی وي؛ ژر یا په ځنډ پر خپل وخت هرومرو کېدونکی دی، او هر یوه ته سم د ده له عمل، نیت، عزم او ارادې سره موافقه ثمره او نتیجه خامخا وررسېدونکې ده.

إِنَّ هَٰذَا الْقُرْآنَ يَقُصُّ عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَكْثَرَ الَّذِي هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿٧٦﴾
وَإِنَّهُ لَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ ﴿٧٧﴾

بېشکه چې دغه قرآن قصه کوي (بیانوي) پر بني اسرائیلو باندې اکثر له هغو شیزونو چې دوی په هغو (شیزونو) کې سره اختلاف کوي. او بېشکه دغه (قرآن) خامخا هدایت دی او رحمت دی لپاره د مؤمنانو (چې هم دوی پرې نفع اخلي).

**تفسير:** يعنې اوس د عملي فيصلې وخت نه دی راغلی، بېشکه قرآن د قولي او عملي فيصلې لپاره راغلی دی، په دغه وخت کې په سماوي علومو او مذهبي شيانو کې له ګردو شخه لوی علماء بني اسرائيل ګڼل کېدل، مګر د عقائدو، احکامو، قصصو، رواياتو او نورو په متعلق د هغوی د شديدو اختلافو قاطعه فيصله او ښه تصفيه همدغه پاک قرآن اورولې ده.

إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُم بِحُكْمِهِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ ﴿٧٨﴾

او بېشکه رب ستا فيصله به وکړي په منځ د دوی کې (په قيامت کې) په حکم (عدل) خپل سره، او همدی ښه غالب قوي دی (په انفاذ د احکامو) ښه علم والا (پر ټولو احوالو او اشياوو).

**تفسير:** يعنې قرآن خو د پوهولو او ښوولو لپاره نازل شوی دی، باقي د ټولو معاملاتو حکيمانه او عادلانه فيصله سم له حکمته سره پخپله قدرت لرونکی قادر او توانا الله تعالی کوي.

فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۖ إِنَّكَ عَلَى الْحَقِّ الْمُبِينِ ﴿٧٩﴾

پس توکل (اعتماد) وکړه خاص پر الله (او د معاندانو له عداوته مه ويرېږه ای رسوله شما !)، بېشکه ته پر حق ښکاره يې (چې اسلام دی).

**تفسير:** يعنې تاسې د هيڅا د اختلاف او تکذيب شخه مه متأثر کېږئ !، يوائې پر پاک الله اعتماد او توکل ولرئ !، او پخپله وظيفه کې چې دعوت او تبليغ دی؛ مشغول او لګيا اوسئ !، پر هغه سمه صافه لاره چې تاسې درومئ؛ په هغې کې هيڅ قسم خرخشه او انديښنه نشته، کله چې انسان پر سمه لاره رهي (روان) وي، او پر واحد الله تعالی اعتماد ولري؛ نو د بل هيڅ شي ويره او انديښنه ورسره نه وي.

إِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتَىٰ وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَاءَ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ ﴿٨٠﴾ وَمَا أَنتَ بِهَادِي
الْعُمْيِ عَن ضَلَالَتِهِمْ ۖ إِن تُسْمِعُ إِلَّا مَن يُؤْمِنُ بِآيَاتِنَا فَهُم مُّسْلِمُونَ ﴿٨١﴾

بېشکه ته نه شې اورولی (خبره) مړيو ته، او (همداسې) نشې اورولی کڼو ته غږ د نارو (د وعظ) کله چې وګرځي دوی په دې حال کې چې شا کوونکي وي. او نه يې ته لاره ښوونکی ړندو ته (چې يې راوګرځوې) له ګمراهۍ د دوی شخه، نه اوروې ته (په سماع د فائدې رسولو سره)؛ مګر هغه چا ته چې ايمان راوړي په آيتونو (د قدرت) شمونږ، پس همدوی مسلمانان دي (غاړه ايښودونکي الله ته).

**تفسير:** يعنې هم هغسې چې يوه مړي ته خطاب يا کوم کاڼه ته نارې وهل په تېره بيا چې تاته يې شاه هم وي، او په منځ در شخه ځغلي، او د نارې وهونکي په طرف قطعًا متلفت نه وي؛ سودمن نه دی، همدغه د هغو مکذبينو حال دی، چې د دوی زړونه مړه شوي دي، او په زړه کاڼه هم دي، او د اورېدلو اراده هم بيخي نه لري، نو د دوی په حق کې هيڅ

نصیحت نافع او کار کوونکی نه دی، که یو خاص ړوند د غېږو او ړنو سترګو خاوند نشي؛ نو تاسې به هغه ته څرنګه لار یا بل شی ورو ښوولی شئ؟

یعنې پند او نصیحت د هغو خلقو په حق کې نافع دی، چې یې ومني او پرې متأثر شی، او د اثر قبلول همدغه دی چې د الله تعالی پر کلام یقین او باور وکړي او ویې مني.

وَإِذَا وَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِمْ أَخْرَجْنَا لَهُمْ دَابَّةً مِّنَ الْأَرْضِ تُكَلِّمُهُمْ أَنَّ النَّاسَ كَانُوا بِآيَاتِنَا لَا يُوقِنُونَ ﴿٨٢﴾

او کله چې واقع ثابت شي خبر د عذاب پر دغو (بني آدمانو او نژدې شي قیامت پر دوی)؛ نو راوبه باسو مونږ دوی ته یو دابه (ژوندی خوځېدونکې تلونکې) له ځمکې، چې خبرې کوي دغه (دابّه) له دوی سره، چې بېشکه دا خلق وو چې په دلائلو (د قدرت او الوهیت) ځمونږ به یې یقین نه کاوه.

تفسیر: موضح القرآن لیکي: «پخوا له قیامته به په مکه معظمه کې د صفا غر وچوي، او له هغه څخه به یو ژوندی خوځېدونکی ووځي، چې له خلقو سره به خبرې کوي، چې اوس قیامت نژدې دی، او صادق مؤمن به له کاذب منکر څخه په نښه کولو سره بېلوي»، له ځینو روایاتو څنې معلومېږي چې دغه به بالکل په آخره زمانه کې واقع کېږي، چې لمر له مغربه وخېژي، نو قیامت د همدغې ورځې نوم دی، چې د ټولې دنیا ګرد موجوده نظام به په کې ګډوډ او خرابیږي، نو د داسې خوارقو په وقوع کې هیڅ تعجّب نه دی پکار چې د قیامت د قریبوؤ علاماتو او د دې مقدمې په شان ظاهرولی شي، ښايي د «دابة الأرض» په ذریعه د دې خبرې ښودنه مقصود وي؛ هغه خبره چې تاسې د یو رسول په ژبه نه منله؛ نن مجبور یئ چې د یوه حیوان په ژبه یې ومنئ !، مګر د دغه وخت منل تاسې ته مفید او نافع نه دي، او له دغه څخه یواځې د مکذبینو تجهیل او تحمیق مطلوب دی، چې د منلو وخت تېر شو.

وَيَوْمَ نَحْشُرُ مِن كُلِّ أُمَّةٍ فَوْجًا مِّمَّن يُكَذِّبُ بِآيَاتِنَا فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿٨٣﴾

او (یاد کړه) هغه ورځ چې ژوندی به راپورته کړو له (قبورو د) هر امّت (فرقې) څخه یو فوج (چې اشراف او رؤساء دي) له هغو (منکرانو) چې تکذیب کوي په آیتونو ځمونږ، پس د دوی جماعتونه به سره یو ځای کېږي، بیا روانیږي.

تفسیر: د هر ګناه کوونکي ټولنه او لښکر به سره بېل وي.

تنبیه: عمومًا مفسرینو د ﴿فَهُمْ يُوزَعُونَ﴾ معنی په ستنولو (واپس کولو) سره کړې ده، یعنې د هر امّت مکذبان به د محشر په طرف بیول کېږي، او دوی به دغومره ډېر او زیات وي، چې وړاندې تلونکي خلق به د وروستنیو مخه بندوي، او له مخکې تللو څخه به یې ستنوي (واپس کوي)، لکه چې په لوی بیروبار او ازدحام کې د انتظام د ټینګ ساتلو لپاره همداسې وضعیت غوره او اختیارولی شي.

حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوا قَالَ أَكَذَّبْتُم بِآيَاتِي وَلَمْ تُحِيطُوا بِهَا عِلْمًا أَمَّاذَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨٤﴾

تر هغه پورې چې راشي دوی (ټول محشر ته) نو وبه فرمايي (ورته الله) آیا تکذیب کړی وو تاسې د آیتونو ځما، حال دا چې احاطه نه وه کړې تاسې په هغـو (آیتونو) له جهته د علمه، آیا څه شی دی هغه چې وئ تاسې چې کاوه به مو (هغه له مأمور بِه څخه؟ وواییئ !).

تفسير: يعنې زيار (محنت) يې ونه کړو، او کوښښ يې ونه کړ چې په پوره ډول به پرې پوهېدل، او تمامو اطرافو او جوانبو ته به يې کتل، ابتداء يې د هغه په تکذيب خوله وسپړدله، «يا وواييء ! که داسې نه ده نو نور مو څه کول؟ يعنې ماسوا له دې نه ستاسې بل څه کار وو؟» امکان لري چې مطلب يې داسې وي، چې بې له غوره او فکر کولو څخه تاسې هم داسې د هغه تکذيب کړی وو؟.

وَوَقَعَ الْقَوْلُ عَلَيْهِم بِمَا ظَلَمُوا فَهُمْ لَا يَنطِقُونَ ﴿٨٥﴾

او واقع ثابته به شي خبره (د عذاب) پر دغو (منکرانو) باندې په سبب د هغه چې ظلم يې کړی وو، پس دوی به هيڅ خبرې نشي کولی (په عذر خواهۍ له جهته د عذاب لا متناهي).

تفسير: يعنې د دوی د شرارتونو يقيني ثبوت وشو، او د الله تعالی حجّت پر دوی تمام شو، اوس وروسته له دې نه به دوی څه ويلی شي؟.

أَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا اللَّيْلَ لِيَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٨٦﴾

آيا نهويني دا (منکران د حشر) چې بېشکه مونږ ګرځولې مو ده شپه (توره تياره) لپاره د دې چې آرام وکړي دوی په کې، او (ګرځولې مو ده) ورځ ليدونکې (تکه سپينه روښانه چې کسب وکار په کې وکړي)، بېشکه په دغه (تعاقب د ليل او نهار) کې خامخا دلائل (د قدرت او عبرت) دي لپاره د (هغه) قوم چې ايمان راوړي.

تفسير: يعنې څرنګه ښکاره دلائل او واضحې نښې الله تعالی په دنيا کې دوی ته وروښودې، خو دوی لږ څه هم پر هغو فکر او غور ونه کړ، که يواځې د شپې او د ورځې پر دغه دائمي تبديل او تحويل او نورو اختلافاتو دوی خپل افکار چلولی او پرې غور او خوض يې کولی؛ نو د الله تعالی پر توحيد، د انبياوو پر ضرورت او اهميت او پر «بعث بعد الموت» پر ګردو شيانو به دوی پوهېدل، چې بالآخر هغه کوم يو ذات دی چې داسې مضبوط او محکم انتظام سره برابر وروسته له ورځې څخه شپه، او د شپې څخه ورځ راښکاره کوي، او څمونږ د ظاهري بصارت لپاره وروسته د شپې له تيارو د ورځې رڼا خوروي، نو آيا دغسې يو مطلق قادر څمونږ د باطني بصيرت لپاره د اوهامو او اهواوو په تيارو کې د معرفت او هدايت رڼا نه ده رالېږلې؟.

وَيَوْمَ يُنفَخُ فِي الصُّورِ فَفَزِعَ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَمَن فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَن شَاءَ اللَّهُ ۚ
وَكُلٌّ أَتَوْهُ دَاخِرِينَ ﴿٨٧﴾ وَتَرَى الْجِبَالَ تَحْسَبُهَا جَامِدَةً وَهِيَ تَمُرُّ مَرَّ السَّحَابِ ۚ صُنْعَ اللَّهِ
الَّذِي أَتْقَنَ كُلَّ شَيْءٍ ۚ إِنَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَفْعَلُونَ ﴿٨٨﴾ مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ خَيْرٌ مِّنْهَا وَهُم
مِّن فَزَعٍ يَوْمَئِذٍ آمِنُونَ ﴿٨٩﴾ وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَكُبَّتْ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ
تَعْمَلُونَ ﴿٩٠﴾

او (ياد کړه) هغه ورځ چې پوکی وکړ شي په صور (شپېلۍ) کې، نو ويرېږي (له ډېره هيبته) هر هغه څوک چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه څوک چې په ځمکه کې دي، مګر هغه څوک چې اراده وفرمايي الله (د نه ويرېدلو د هغه)، او ټول به راشي د دغه (الله په حضور په قيامت کې) عاجزان. او وينې به ته غرونه (په قيامت کې) ګمان به کوې ته پر هغو چې کلک ولاړ دي (له

جهته د لويوالي) حال دا چې دوی به ځي تيريږي پشان د وريځې، كاريګري د الله (يا وكړ دا كار الله په كولو سره) هغه (الله) چې محكم (درست) كړی يې دی هر څيز (چې پيدا كړی يې دی)، بېشكه چې دغه (الله) ښه خبردار دی په هغو كارو چې كوئ يې تاسې. هر هغه څوک چې راشي په حسنه (نېكۍ) سره (چې كلمه د توحيد ده)؛ پس شته ده ته (جزاء) بهتر غوره له هغه، او دوی به له سختې وېرې د دغې ورځې په امان وي. او هر هغه څوک چې راشي په سيئه (بدئ شرك سره)؛ پس نسكور به وغورځول شي مخونه د دوی په اور (د دوزخ كې، او وبه ويل شي دوی ته له جانبه د الله) آيا جزاء دركوله كيږي (بلكه نه دركوله كيږي)؛ مګر (جزاء د شرک او نورو معاصيو) هغه چې وئ تاسې چې كول به مو (په دنيا كې).

تفسير: د صور «شپېلۍ» پو كوونكې پرښته اسرافيل عليه السلام دی، چې د الله تعالى د حكم په انتظار كې د صور د پوكولو لپاره تيار ولاړ دي.

په ځينو رواياتو كې راغلي دي چې: ﴿إِلَّا مَن شَآءَ ٱللَّهُ﴾ جبرئيل، ميكائيل، عزرائيل عليهم السلام دي، ځينې د دې مصداق شهداء بولي، والله أعلم.

(موضح القرآن) ليكي: يو ځلې صور پوكلی كيږي، چې د هغه په اثر به ګرد مخلوق سره مري، دوهم صور چې وپوكلی شي؛ د هغه په اثر ټول مړي بيا له سره ژوندي كيږي، دريم صور چې وپوكلی شي؛ دوی ګرد ويريږي، په څلورم كې ګرد بېهوشه كيږي، په پنځم كې بيا په هوش كيږي، د «صور» پوكل به څو څو ځلې صورت نيسي، اكثر علماء يواځې هم دغه دوې نفخې مني، يعنې ګرد سره فقط دوه ځلې صور پوكلی كيږي، او دغه ګرد احوال او اهوال د هم دغو دوو شپېليو لاندې درجوي، والله أعلم.

﴿وَتَرَى ٱلْجِبَالَ﴾ الآية ـ او وينې به ته غرونه په قيامت كې، ګمان به كوې ته پر هغوی چې كلك ولاړ دي، له جهته د لويوالي، حال دا چې دوی به تيريږي په شان د وريځې، يعنې دغه لوی لوی غرونه چې تاسې يې اوس وينئ، او د دې خيال كوئ چې دغه به تل پر ځمكه كلك ولاړ وي، او له سره به له خپله ځايه نه ښوريږي، دغه ګرد به د قيامت په ورځ كې د ټكولو شويو رنګينو وړو په شان په فضاء او هواء كې الوځي او ګرځي، او د وريځو په شان به ژر ژر درومي، لكه چې د (۲۷) جزء د «الواقعة» سورت په اوله ركوع (۵-۶) آيتونو كې داسې يو آيت لولو: ﴿وَبُسَّتِ ٱلْجِبَالُ بَسًّا ۞ فَكَانَتْ هَبَآءً مُّنۢبَثًّا﴾ او په «القارعة» كې لولو ﴿وَتَكُونُ ٱلْجِبَالُ كَٱلْعِهْنِ ٱلْمَنفُوشِ﴾، او (۱۶ جزء د «طه» سورت په (۶) ركوع، (۱۰۵) آيت كې) لولو: ﴿وَيَسْـَٔلُونَكَ عَنِ ٱلْجِبَالِ فَقُلْ يَنسِفُهَا رَبِّى نَسْفًا﴾.

تنبيه: د دغه آيت هيڅ تعلّق د ځمكې د حركت او سكون سره نشته، لكه چې ځينې متنورين له هغه څنې پوهېدلي دي.

﴿صُنْعَ ٱللَّهِ ٱلَّذِىٓ أَتْقَنَ كُلَّ شَىْءٍ﴾ يعنې هغه ذات چې هر شی يې په نهايت حكمت سره درست كړ، هغه الله تعالى چې نن يې دغه غرونه داسې درانه او مضبوط جوړ او درولي دي، هم هغه الله تعالى به يوه ورځ دوی بځركي بځركي او دړې وړې كوي، او ترې دوړې به جوړوي، او په هواء به يې الوځوي، دغه د غرونو الوځول به د خرابۍ او تباهۍ په غرض نه وي، بلكه د عالم په نظام كې به سره لاندې باندې او لازمه تعديلات كوي، او په همغه درجه يې رسوي چې د هغه لپاره يې پيدا كړي دي، نو دغه ګرد به د هغه حقيقي صانع صنعت او كاريګري وي، چې د هغه هيڅ يو تصرّف له حكمت څخه تش نه دی، ﴿إِنَّهُۥ خَبِيرٌۢ بِمَا تَفْعَلُونَ﴾ الله تعالى ستاسو په اعمالو خبردار دي چا چې څه كړي وی د هغه پوره جزاء به وركول كيږي نو چا چې نېكي كړي وي توحيد كلمه يې ويلې وي، او عقيده يې پرې ساتلې وي نو هغه ته به ښه بدله وي، او چا چې شرک او بد عمل كړي وي هغه ته به د هغه د شرک او بد عملونو سزا پوره وركول كيږئ.

إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هَٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِي حَرَّمَهَا وَلَهُ كُلُّ شَيْءٍ

بېشکه همدا خبره ده چې امر (حکم) کړی شوی دی ماته داسې چې عبادت کوم د رب د دې بلدې (ښار) هغه (الله) چې حُرمت (عزت یې) ورکړی دی دې (ښار د مکې ته په امن سره)، او خاص همدغه الله لره دي (ملکا، خَلقًا، وعبیدًا) هر شی.

تفسیر: له بلده او ښار څخه مراد مکّه معظّمه ده، چې الله تعالی هغې ته خاص تعظیم، تحریم او تکریم ور په برخه کړی دی، نو د دغه تخصیص او تشریف په سبب د رب اضافت د هغې په طرف وکړ شو، که نه الله تعالی خو د ټولو شیانو رب او مالک دی.

وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٩١﴾

او امر (حکم) کړی شوی دی ماته داسې چې شم زه له مسلمانانو (غاړه ایښودونکیو الله ته).

تفسیر: یعنې په هغو خلقو کې محسوب شم، چې د پاک الله کامل حکم منونکي او فرمان وړونکي دي، او بیخي یې خپل ځانونه ورسپارلي دي.

وَأَنْ أَتْلُوَ الْقُرْآنَ فَمَنِ اهْتَدَىٰ فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ وَمَنْ ضَلَّ فَقُلْ إِنَّمَا أَنَا مِنَ الْمُنْذِرِينَ ﴿٩٢﴾

او (بل مأمور یم) په دې چې ولولم قرآن (پر تاسو، وایې وروم خلقو ته)، پس هر چا چې سمه صافه لاره وموندله؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې سمه صافه لاره یې وموندله لپاره د ځان (او فائدې خپلې)، او هر څوک چې ګمراه شو؛ پس ووایه (ای محمده ! ده ته) بېشکه همدا خبره ده چې زه له ویروونکیو څخه یم.

تفسیر: یعنې زه بالذات هم د الله تعالی بندګي او فرمان برداري کوم، او نورو ته هم د الله تعالی دغه عظیم الشأن قرآن اوروم، او د هدایت سمه صافه لاره خلقو ته ورښیم، پس هر څوک چې لاره یې وموندله له جهته د متابعت ځما توحید د الله او نفي د شرکاوو ته؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې لاره یې وموندله لپاره د ځان خپل، ځکه چې نفع یې همده ته راجع ده، او هر څوک چې ګمراه شو له جهته د مخالفت ځما؛ پس ووایه ورته چې: بېشکه همدا خبره ده چې زه له ویروونکیو څخه یم، او پر ما غیر له پیغام رسولو بل هیڅ نشته، او وبال د ضلال د بل چا پر ما نه لوېږي، یعنې ما خپل پند او نصیحت کړی دی، او له دغه تبلیغه مې ځان فارغ الذمه ګرځولی دی، که تاسو نه پوهېږئ، یا ځان پرې نه پوهوئ؛ نو په دغه صورت کې ستاسو نقصان دی، او دغه احکام پخوا له امر د قتال وو.

وَقُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ سَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ فَتَعْرِفُونَهَا ۚ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٩٣﴾

او ووایه (ای محمده !) چې ټولې ثناوې ستاینې (صفتونه) (خاص) الله ته دي (په دغه نعمت د علم او نبوّت)، ژر به وښیي (الله) تاسې ته دلائل (د قدرت خپل)؛ پس وبه پېژنئ تاسې هغه (دلائل)، او نه دی رب (پالونکی) د تا غافل (بیخبره) له هغو عملونو نه چې کوئ یې تاسې (ای مشرکانو نو جزاء به ورکړي هر چا ته د ده له عمله سره سمه).

تفسیر: یعنې الله تعالی ته په زرهاوو ځلې د حمد او شکر ځای دی، چې زه یې هادي او مهتدي ګرځولی یم، في الحقیقت د تعریف لایق هم هغه لوی او مقدّس ذات دی، هر چا ته هر هغه ښېګڼې یا کمال چې ور په برخه شوی دی؛

د ده له لطف او مرحمت څخه دی، ژر به وښيي الله تاسې دلائل د قدرت خپل، پس وبه پېژنئ تاسې هغه دلائل، يعنې وروسته له دې نه الله تعالى ستاسې په منځ كې يا د باندې د خپل قدرت هغه نمونې او څما د صداقت داسې ښكاره دلائل به درښيي؛ چې د هغو په ليدلو سره به تاسې وپوهېږئ چې بېشكه دغه د الله تعالى هغه آيات دي، چې د هغو اطلاع مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم راكړې وه.

تمت سورة النمل، ولله الحمدُ والمنة.



# سُورَةُ الْقَصَصِ

«د (القصص) سورت «مكي» دى، پرته له (۵۲) تر (۵۵) آيتونو پورې، چې «مدني» دي، او له (۸۵) آيت څخه چې په جحفه کې د هجرت په جريان کې نازل شوى دى، (۸۸) آيتونه (۹) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۸) او په نزول کې (۴۹) سورت دى، وروسته د «النمل» له سورت څخه نازل شوى دى.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکى دى.

طٰسٓمّٓ ﴿۱﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿۲﴾ نَتْلُوْا عَلَيْكَ مِنْ نَّبَاِ مُوْسٰى وَفِرْعَوْنَ بِالْحَقِّ لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۳﴾

دا (آيتونه د دې سورت) آيتونه د کتاب مبين (ښکاره) دي (چې خير او برکت يې ښکاره او د حق او د باطل بېلوونکى دى). لولو مونږ پر تا (اى محمده !) له (ځينو) خبرو د موسى او د فرعون په حقه (رښتيا) سره، لپاره د (هغه) قوم چې ايمان راوړي.

**تفسير:** يعني مسلمان خلق دې خپل حال قياس کړي ! (موضح) د ظالمانو په مقابل کې څرنګه چې د موسى عليه السلام په ذريعه الله تعالى بني اسرائيل سره له ضعف او کمزورۍ د فرعونيانو په مقابل کې منصور او مظفر وګرځول؛ همداسې مسلمانانو ته هم اګر که نن په مکې معظمې کې قليل - ضعيف او ناتوانه په نظر راځي، د دوى د بېشمارو زوررو اعداوو په مقابل کې برى او کاميابي ور په برخه کوي.

اِنَّ فِرْعَوْنَ عَلَا فِي الْاَرْضِ وَجَعَلَ اَهْلَهَا شِيَعًا يَّسْتَضْعِفُ طَآئِفَةً مِّنْهُمْ

بېشکه چې فرعون لويي (او تکبّر) غوره کړى وو په ځمکه (د مصر) کې، او ګرځولي يې وو اهل د دغه (مصر) ټولى ټولى، چې ضعيفه (مقهوره) کړي يې وه يوه طائفه له دوى (چې بني اسرائيل وو).

**تفسير:** يعني په مصر کې قبطيان ودان وو، چې د فرعون له قوم څخه وو، او سبطيان هم اوسېدل چې په بني اسرائيلو سره مشهور وو، ليکن فرعون به د ظلم او تکبّر له لارې بني اسرائيلو ته فرصت او موقع نه ورکوله، چې دوى ترقي وکړي، او په هوسايۍ (راحت) او آرام سره ډېر ولګوي، ګواکې ګرد قبطيان سرداران او آغايان ګرځېدلي وو، او د انبياوو اولاد بني اسرائيل يې خپل غلامان او نوکران ګرځولي وو، او پر دوى به يې ډېر ذليل کارونه او سخته بيګاري اجراء کوله، او په هيڅ ډول يې نه پرېښودل چې دوى په مملکت کې قوت او وقعت حاصل کړي.

يُذَبِّحُ اَبْنَآءَهُمْ وَيَسْتَحْيٖ نِسَآءَهُمْ

چې وژل به يې ځامن د دوى (چې نسل يې منقطع شي) او ژوندۍ به يې پرېښودې ښځې (جنکيانې) د دوى (خپل خدمت ته).

**تفسير:** مفسّرين وايي چې: فرعون يو خوب وليد چې کاهنانو د هغه تعبير داسې وکړ چې: «د کوم داسې بني اسرائيلي هلاك له لاسه به ستا دغه سلطنت تباه او بربادېږي، چې لا تر اوسه نه دى ځېږېدلى»، نو ځکه فرعون د دغې پېښې د

مخې نيولو په قصد دغه د ظلم او حماقت تدبير له خپله ځانه وويست، چې د تل لپاره بني اسرائيليان مغلوب، مقهور او ذليل وساتي، څو په دوی کې داسې کوم قوّت او قدرت پيدا نشي، چې له هغه څخه د بغاوت او شرارت کومه اندېښنه متصوره وي، او داسې امر يې صادر کړ: «وروسته له دې نه هومره بني اسرائيلي هلکان چې پيدا کيږي؛ دوی دې د يوې مخې څخه ووژلی شي !، او په دغه ترتيب دې د راتلونکې مصيبت او خطرې مخه په ښه شان سره ونيوله شي، کله چې قبطيانو ته د سبطيانو د جونو له خوا داسې کومه خطره نشته؛ نو دوی دې ژوندی پرېښودی شي، څو وروسته له پېغلتوبه له هغوی څخه قبطيان د وينځو په شان کار واخلي».

إِنَّهُۥ كَانَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ ۝٤

بېشکه وو دغه (فرعون) له مفسدانو (چې راز راز فسادونه به يې کول).

تفسير: يعني فرعون خو بالطبع په ځمکه کې خرابي غورځوونکی وو، نو ځکه د داسې لوی ظلم او ستم څخه له سره نه لړځېده، او نه يې زړه خوږېده.

وَنُرِيدُ أَن نَّمُنَّ عَلَى ٱلَّذِينَ ٱسْتُضْعِفُوا۟ فِى ٱلْأَرْضِ وَنَجْعَلَهُمْ أَئِمَّةً وَنَجْعَلَهُمُ ٱلْوَٰرِثِينَ ۝٥ وَنُمَكِّنَ لَهُمْ فِى ٱلْأَرْضِ

او اراده وکړه مونږ د دې چې منّت احسان کېږدو پر هغو کسانو چې ضعيفان کړی شوي وو په ځمکه (د مصر) کې، او چې وګرځوو مونږ دوی امامان (مقتدايان)، او وګرځوو مونږ دوی وارثان (د ملک د فرعون). او چې قُدرت ورکړو مونږ دوی ته په ځمکه (د مصر او شام) کې.

تفسير: يعني د دغه ملعون انتظامات خو هغه وو، او ځمونږ اراده داسې وه چې کمزوران زورور کړو، او ټيټ مخلوق هسک (اوچت) کړو، او د هغه قوم پر سر د ديني امامت او دنيوي سيادت تاج کېږدو، چې د فرعون او فرعونيانو له لوري ذليل حقير او مريان شوي وو، او له هغو ظالمانو او متکبّرانو څخه هغه ځمکه پاکه او صافه کړو.

وَنُرِىَ فِرْعَوْنَ وَهَٰمَٰنَ

او چې وښيو فرعون او هامان (وزير ته يې).

تفسير: هامان د فرعون وزير او د ده په ظلم، ستم او تيري کې له ده سره شريک، د ده د کار آله او د لاس د يوې همسا په شان وو.

وَجُنُودَهُمَا مِنْهُم مَّا كَانُوا۟ يَحْذَرُونَ ۝٦

او لښکرو د دغو دواړو ته له دغو (بني اسرائيلو نه) هغه شی چې وو دوی چې ويرېدل (به ترې چې زوال د قوّت او سلطنت د قبطيانو دی).

تفسير: يعني د هغې خطرې لامله چې دغو قبطيانو د سبطيانو پر زرهاوو معصومو هلکان وژلي وو؛ مونږ اراده وفرمايله چې هم هغه خطره وردمخه کړو، فرعون خپل ګرد امکاني کوښښ او زيار (محنت) پکار واچولو، چې په هيڅ صورت هغه بني اسرائيلی هلک چې د هغه له لاسه د ده سلطنت تباه کيږي؛ مصئون او مأمون پاتې نشي، او فرعون د ده له شره ساتلی وي، مګر کله چې د الله تعالی د ارادې په مقابل کې هيڅ مانع نه شي درېدی؛ نو هم هغه معهود هلک يې د ده په غېږ کې وپاله، او د دوی په وسيله يې وساته، او دغه يې علی رؤوس الأشهاد ثابت او محقق کړ؛ د هر هغه کار او انتظام اراده چې الله تعالی وفرمايي؛ هيڅ يو قوّت او قُدرت د هغه په انسداد کې نه موفّق کيږي.

وَأَوْحَيْنَا إِلَى أُمِّ مُوسَى أَنْ أَرْضِعِيهِ فَإِذَا خِفْتِ عَلَيْهِ فَأَلْقِيهِ فِي الْيَمِّ

او وحي (الهام) وكړ مونږ مور د موسى ته داسې چې تى وركوه ته دغه (موسى) ته، نو كله چې وويرېدې ته (په ده)؛ پس وغورځوه دغه (موسى سره له تابوته) په سيند كې.

**تفسير:** د موسى عليه السلام مور ته يا الهام وشو، يا يې په خوب كې وليد، يا په بله كومه ذريعه ورمعلومه شوه، څو چې تاته خپل د دې هلك د وژلو ويره او اندېښنه نه وي پيدا شوې؛ په منظم ډول سره يې وپاله !، او تى وركوه !، كله چې د وژلو ويره درته پيدا شي؛ نو په يوه صندوق كې يې تابوت كړه، او د نيل په سيند كې يې لاهو كړه، دغه قصه د «طه» په سورت كې هم ليكلې شوې ده.

وَلَا تَخَافِي وَلَا تَحْزَنِي إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝٧

او مه ويرېږه ته (له غرق يې) او مه خفه كېږه ته (له بېلتون يې) ! بېشكه چې مونږ بېرته راوستونكي يو د دغه (موسى) تاته، او (بيا) ګرځوونكي يو د دغه (موسى) له مرسلانو (پيغمبرانو).

**تفسير:** يعنې مور ته يې ډاډينه او تسلي وركړه شوه، چې مه ويرېږه، او بې له كوم تردّد او اندېښنې يې په سيند كې لاهو كړه !، ستا دغه هلك له سره نه ضايع كيږي، او د خپل ځوى د دغه بېلتون څخه هم مه خفه كېږه ! چې مونږ يې ډېر ژر بېرته ستا غېږې ته درولو، او د پاك الله اراده په دې خبره تللې ده، چې له دې نه يو ډېر لوى كار واخلي، او د رسالت په منصب يې افتخار وبخښي، او هيڅ يو قوت او طاقت د الله د ارادې په مخ كې حائل او مانع نشي كېدى، او دغه ګرد موانع به له منځه لرې كيږي، او دغه مقدّس مقصد هرومرو پوره كېدونكى دى، چې د دغه محترم مولود له وجوده سره متعلق دى.

فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا إِنَّ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَجُنُودَهُمَا كَانُوا خَاطِئِينَ ۝٨

پس ومونده دغه (او ونيو تابوت د موسى) كورنۍ د فرعون لپاره د دې چې شي دغو (فرعونيانو) ته دښمن او (سبب د) غم، بېشكه چې فرعون او هامان (وزير يې) او لښكرې د دغو دواړو وو (دا ټول) خطاكاران.

**تفسير:** مور يې خپل هلك د لرګيو يوه صندوق كې وغورځوه، او د سيند په اوبو كې يې خوشې كړ، صندوق د اوبو د جريان په متابعت په داسې يوې ويالې كې لاړ چې د فرعون په باغ كې تېرېده، او هلته د مېرمنې آسيې رضي الله تعالى عنها د فرعون ښځې په لاس كې ولوېد، مېرمنې آسيې رضي الله تعالى عنها ته ددغه ښكلي هلك ښكلې صورت ډېر ښه په نظر ورغى، او د ده په وچولي (تندي) كې د نجابت او شرافت آثار ورښكاره شول، نو يې د پاللو په غرض راپورته كړ، مګر د دې پورته كولو آخري نتيجه داسې شوه، چې دغه وړوكى لوى شو، او د فرعون او د فرعونيانو سخت مخالف او دښمن ثابت شو، او د دوى په حق كې د روح د سوهان په شان عيان شو، نو ځكه الله تعالى هغوى ته موقع وركړه چې دى راپورته كړي، لعين فرعون له دې څخه څه خبر وو، د هغه دښمن له وېرې چې زه په زرهاوو معصوم هلكان وژنم، هغه هم دغه هلك دى، چې نن په ډېر ناز او نعمت سره ځمونږ په لاسو د هغه پالنه او روزنه كيږي.

وَقَالَتِ امْرَأَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَيْنٍ لِّي وَلَكَ

او وويل ښځې د فرعون (آسيې چې دغه هلك) يخوالى د سترګو دى ماته او تاته.

تفسیر: یعنې څومره ښکلی، ګلالی او په زړه پورې هلك دی، مونږ هلکه نه لرو، راځئ ! چې له ده سره خپل فهم غلط کړو، او سترګې پرې رڼې او زړونه مو خوښ کړو.

لَا تَقْتُلُوهُ عَسَىٰ أَن يَنفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا

مه وژنئ دغه (هلك) ښایي چې نفع به راورسوي مونږ ته، یا به ونیسو دی ځوی.

تفسیر: یعنې کله چې لوی شي؛ ځمونږ په کار به راشي، او که مو مناسب وګاڼه؛ نو خپل متبني به يې وګرځوو.

وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝٩

حال دا چې دوی نه پوهېدل (پر دغه سبب د هلاك د فرعونیانو).

تفسیر: یعنې له دې نه خو نه وو خبر؛ کله چې دی لوی شي نو څه څه کارونه به وکړي؟ آیا دغه خبره خو ضروري نه ده، چې همدغه هلك به هم هغه ځمونږ معهود دښمن وي، چې مونږ ترې اندېښنه لرو، بیا چې یې کله مونږ وپالو، نو دی به څرنګه ځمونږ په خلاف څه اقدام وکړي؟، دوی له دې نه نه وو خبر چې دغه هلك به له هغه لوی ذات سره زیاته دوستي کوي، چې د ګرد جهان رب او پالونکی دی، او کله چې تاسې د هغه ربّ العالمین دښمنان یئ؛ نو ځکه دی به مجبور وي چې د هغه حقیقي رب العالمین په حکم ستاسې سره مخالفت وکړي.

وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَىٰ فَارِغًا ۖ إِن كَادَتْ لَتُبْدِي بِهِ لَوْلَا أَن رَّبَطْنَا عَلَىٰ قَلْبِهَا لِتَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝١٠

او سبا ته وګرځېد زړه د مور د موسی تش له صبره قراره (او له نورو افکارو پرته ـ علاوه د غمه د موسی)، بېشکه چې نژدې وه چې اظهار وکړي په دغه (موسی سره چې ځوی مې دی) که چېرې نه وی محکم کړی مونږ (صبر او ثبات) پر زړه د دې، چې شي دا له باور کوونکیو (په وعده د الله سره).

تفسیر: اګر که د موسی علیه السلام مور د موسی علیه السلام تابوت په سیند کې لاهو کړ، مګر د موروالي لورینې او د موروالي مینې کله دې ته اجازه ورکوله او آرامه به یې پرېښوده، چې د موسی علیه السلام له حاله او له یاده غافله پاتې شي، نو شپه او ورځ به د موسی علیه السلام فکر او ذکر له دې سره مل وو، او له زړه څخه یې صبر او قرار فرار کړی وو، اونژدې وو چې د ضبط او صبر تار ترې وشلیږي، او په عمومي ډول سره د ژړا او انګولا په ضمن کې دغه خبره ترې څرګنده شي، چې زه هغه کمبخته مور یم چې خپل ځوی مې په خپل لاس په سیند کې غورځولی دی، که چا موندلی وي یا یې پته ور معلومه وي؛ نو راته ودې وایي، مګر د الله تعالی دغه الهام ﴿إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ به ورته ډاډینه او تسلي ورکوله، نو دغه د الله تعالی کار وو چې د دې زړه ته صبر، ثبات، او تسکین ور په برخه کړي، څو د الله تعالی اسرار یخوا له وخته افشاء او اظهار نه شي، او لږ څه مدّت وروسته پخپله د موسی علیه السلام مور ته عین الیقین حاصل شي، چې د الله تعالی دغه وعده هرومرو پوره کېدونکې ده.

وَقَالَتْ لِأُخْتِهِ قُصِّيهِ ۖ فَبَصُرَتْ بِهِ عَن جُنُبٍ وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۝١١

او ویل (مور د موسی) خور د دغه (موسی) ته چې څه برابره ورور پسې دې (او خبر یې راوړه)، پس کتل به یې دغه (موسی) ته له لرې ځایه (لکه پردی) حال دا چې دغه (فرعونیان) نه پوهېدل (په دغه خورولۍ او جاسوسی د دې).

تفسير: يعني كله چې د فرعون په حرم سراى کې هغه صندوق خلاص او دغه هلك په کې وموندل شو، او په گرده دنيا کې يې آوازه (انگازه) گډه او شهرت يې وموند، د موسى عليه السلام مور خپلې لور د موسى عليه السلام خور ته لا له پخوا څخه حکم ورکړى وو، چې ته دې د خپل ورور په سراغ او پته لگولو پسې تل لگيا اوسه !، او له لرې په پټه سره د هغه حال او احوال ځان ته معلوم کړه ! چې څېرې پيدا کيږي؟ او څه ما جرا پرې تيريږي؟ کله چې دغه جينۍ پوهه او هوښياره وه، د هغه شهرت او انگاځې په اثر يې ژر ځان برابر هم هغه ځاى ته ورسوه، چې پر هغه له سينده موندلې هلك باندې لوى ازدحام او بيروبار جوړ شوى وو، او هلته لکه يوه بې تعلقه اجنبيه لرې ودرېده، او هيڅ څوك په دې ونه پوهېدل چې دا د دغه هلك خور ده.

وَحَرَّمْنَا عَلَيْهِ الْمَرَاضِعَ مِن قَبْلُ فَقَالَتْ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ أَهْلِ بَيْتٍ يَكْفُلُونَهُ لَكُمْ وَهُمْ لَهُ نَاصِحُونَ ﴿١٢﴾

او حرام (منع) کړي وه مونږ پر دغه (موسى تې رودل د) دايگانو له پخوا (د ببرته ورتلو مور خپلې ته)، نو ويل (خور د موسى) آيا خبر کړم زه تاسې پر اهل د (داسې) کاله باندې چې واخلي وساتي دا (هلك) تاسې ته، او دوى به ده ته له خير غوښتونکيو وي.

تفسير: يعني د فرعون ښځې ملعون فرعون هم د دغه هلك په پالنه او ساتنه راضي کړ، دلته د تي ورکوونکيو فکر ورپيدا شو، او ډېرې دايگانې يې طلب کړې، مگر الله تعالى لا له پخوا څخه د موسى عليه السلام شونډې کلکې تړلې وې، چې پرته (علاوه) د خپلې مور له تي څخه د بل چا تى په خوله ونه نيسي، نو سخت تشويش ور پيدا شو، چې داسې يوه مرضعه له کومه ځايه راپيدا کړه شي، چې دغه هلك يې تى وروي؟ ولې چې موسى عليه السلام به مطلقاً د هيڅ يوې مرضعې تي ته خپل مخ نه اړاوه، فرعوني خدم او حشم په همدغه فکر او انديښنه کې وو چې د موسى عليه السلام خور وويل چې: «زه د داسې يوې کورنۍ معرفي تاسې ته کولى شم، چې ډېره پاکه او صافه ده، او ممکن دي چې دغه هلك د هغې کورنۍ د کومې ښځې تى وروي، او تر هغه ځاى پورې چې زه معلومات لرم؛ هغوى به په ډېرې لورينې (مهربانۍ) او خير غوښتنې سره د دغه هلك روزنه او پالنه کوي، ځکه چې هغه کورنۍ ډېره شريفه او نجيبه ده، او علاوه پر هغه د باچاهۍ له کوره د انعام او اکرام لوى توقّعات هغوى لا په دې اړوي چې پر دغه هلك ښه توجه او فهم ولري».

بالنتيجه د همدې جينۍ په مشوره د موسى عليه السلام مور وغوښتله شوه، په مجرد د دې چې د خپلې مور بوى پر موسى عليه السلام ولگېده؛ په ډېره مينه او محبت سره يې خپل ځان د مور په تي پورې ونښلوه، او په غړکهار سره يې په تي رودلو شروع وکړه، فرعوني کورنۍ ته د دغې ښځې پيدا کېدل ډېر غنيمت معلوم شول، چې بالآخر هغه هلك د يوې مرضعې يعني د خپلې مور تي سره پخلا شو، او شودې يې روي، په دغه ټول سره خوښ او خوشال شول.

فَرَدَدْنَاهُ إِلَىٰ أُمِّهِ كَيْ تَقَرَّ عَيْنُهَا وَلَا تَحْزَنَ وَلِتَعْلَمَ أَنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ

پس بېرته راوست مونږ دغه (موسى) مور خپلې ته لپاره د دې چې يخې (او رڼې) شي سترگې د دې (په بېرته رسېدو د موسى)، او چې نشي غمجنه (په بېلتون يې)، او لپاره د دې چې وپوهيږي (په عين اليقين هم) په دې چې ببشكه وعده د الله حقه ده.

تفسير: يعني په ﴿إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ﴾ کې دوه وعدې ورسره شوې وې، يوه خو هم هغه وعده وه چې مور يې پخپلو سترگو وليده چې په څه يو حيرانوونکې طريقه پوره او تر سره شوه، او د دويمې وعدې د پوره کېدولو لپاره ورته قياس موقع پيدا شوه، چې ببشكه هغه هم په خپل وخت او نېټه پوره کېدونکې ده.

وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳﴾

ولیکن اکثر د دوی نه پوهیږي (پرې چې حقه ده).

تفسیر: یعنې د الله تعالی وعده هرومرو رسېدونکې او واقع کېدونکې ده، هو ! په منځ کې ډېر خنډونه او موانع پیښیږي، چې د هغو په نسبت ډېر ضعیف الاعتقاد کسان متردّد او مشتبه کیږي، (موضح).

وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ وَاسْتَوٰٓى اٰتَيْنٰهُ حُكْمًا وَّعِلْمًا ؕ وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۴﴾

او کله چې ورسېد (موسی) زور (قوّت د ځوانی خپلې) ته، او برابر شو (په عقل)؛ نو ورکړ مونږ ده ته حکمت (نبوّت) او علم (پوهه)، او همداسې (مهرباني چې وکړه مونږ په موسی او مور یې؛) جزاء ورکوو مونږ نیکي کوونکو ته.

تفسیر: یعنې کله چې موسی علیه السلام د خپل رُشد او ځلمیتوب وخت ته ورسېد؛ نو مونږ ده ته ډېرې د حکمت خبرې وروښودې، او خصوصي علم او فهم او پوهه مو ورکړه، ځکه چې دی د هلکتوبه صالح او نېک عمل وو، نو داسې پوهو او قابلو خلقو سره ځمونږ لطف او مرحمت همداسې مبذول کیږي.

وَدَخَلَ الْمَدِيْنَةَ عَلٰى حِيْنِ غَفْلَةٍ مِّنْ اَهْلِهَا فَوَجَدَ فِيْهَا رَجُلَيْنِ يَقْتَتِلٰنِ ۫ هٰذَا مِنْ شِيْعَتِهٖ وَهٰذَا مِنْ عَدُوِّهٖ ۚ فَاسْتَغَاثَهُ الَّذِىْ مِنْ شِيْعَتِهٖ عَلَى الَّذِىْ مِنْ عَدُوِّهٖ ۙ فَوَكَزَهٗ مُوْسٰى فَقَضٰى عَلَيْهِ ۫ قَالَ هٰذَا مِنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ ؕ اِنَّهٗ عَدُوٌّ مُّضِلٌّ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْ ظَلَمْتُ نَفْسِىْ فَاغْفِرْ لِىْ فَغَفَرَ لَهٗ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۶﴾

او ننوت (موسی) ښار (د مصر) ته په وخت د غفلت د اهل د هغه کې (د غرمې په وخت کې چې ویده وو)، پس ویې موندل په دغه ښار کې دوه سړي چې جګړه یې سره کوله، دغه یو (سبطي) له تابعانو د دغه (موسی وو)، او هغه (بل قبطي) له دښمنانو د دغه (موسی) وو، پس مرسته (مدد) وغوښته دغه (سبطي) چې له تابعانو د دغه (موسی) وو پر هغه (قبطي) چې له دښمنانو د ده وو، پس په سوک وواهه هغه (قبطي) لره موسی؛ پس قضاء وکړه (الله) په دغه قبطي (چې مړ یې کړ په سوک د موسی سره، کله چې د وژلو قصد یې نه وو کړی، او نه وو مأمور په قتل د هغه؛ نو ځکه) وویل (موسی) چې: دغه کار له عمله د شیطان دی، بېشکه چې دغه (شیطان) دښمن دی (د انسانانو) لغزوونکی دی ښکاره. وویل (موسی) ای ربه ځما ! بېشکه زه چې یم ظلم مې کړی دی په نفس خپل (په قتل د دغه قبطي سره)، پس مغفرت وکړه ماته (د دغې ګناه ځما)، پس مغفرت وکړ (الله) دغه (موسی) ته، بېشکه چې (الله) همدی دی خامخا ښه بخښونکی د (خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: موسی علیه السلام وروسته له ځلمیتوبه یوه ورځ په داسې وخت کې ښار ته ورسېده چې خلق غافل ویده وو، ښایي چې یا به د شپې یا به د غرمې وخت وو، موسی علیه السلام چې کله ځلمی شو؛ د فرعون له قوم او د دوی د ظلم او کفر له سببه بېزاره وو، او تل به یې له بني اسرائیلو سره ناسته او ولاړه درلوده، د ده د مور کور د ښاره د باندې وو، موسی علیه السلام به کله کله هلته ورته، او کله به د فرعون کره هم ورته، د فرعون قوم (قبط) د ده سره هم عداوت او دښمني درلوده، او داسې به یې د ده په نسبت ویل چې: دی ذاتًا د غیر قوم یو ځلمی دی، نه چې د زور او قوّت خاوند

شي، موسی علیه السلام یوه ورځ ولید چې دوو سړیو پخپلو منځو کې جنګ سره کوو، چې یو یې سبطي (اسرائیلي) او هغه بل یې قبطي وو، کله چې اسرائیلي موسی علیه السلام ولید؛ ورناړې یې کړې چې: «راشه د دغه قبطي له لاسه مې خلاص کړه»، موسی علیه السلام تش تهدید او ویرولو لپاره د یوه سوک ګزار پرې وکړ، ځرنګه چې موسی علیه السلام ډېر یو قوي ځلمی وو؛ په هم هغه سوک سره یې دغه قبطي پر ځمکه ونښلوه، حال دا چې پخپله موسی ته دا نه وه معلومه چې ځما په یوه سوک به داسې یو قوي سړی یو په یو مري، نو ډېر زیات خفه شو، چې ولې بلا قصده وینه را په غاړه شوه.

له بل طرفه د دغه بلا اراده قتل په اثر دغه فکر او اندېښنه تولیده کېده، چې له ګوند (ډلي) او ګوند بازۍ (ډله بازۍ) اور یو ځلي بل او د نورو مصائبو او فتنو ابواب ونه پرانستل شي، نو ځکه موسی علیه السلام له خپل عمل څخه سخت نادم او متأثر شو، او داسې وپوهېد چې د ده په دغه عمل کې تر یوې درجې پورې د شیطان مداخله هم شته، د انبیاوو علیهم السلام ضمیر او فطرت داسې پاک او صاف او د هغوی استعداد دومره اعلی وي، چې پخوا د نبوّت له موندلو څخه دوی د خپلو اعمالو د یوې یوې ذرې محاسبه په ډېر تدقیق کوي، او په ډېر لږ ښوییدلو یا اجتهادي خطا د پاک الله له درباره په عجز او نیاز او ژړا معافي غواړي، او ترې توبه کوي، لکه چې موسی علیه السلام هم د دغې خپلې خطا معافي وغوښته، او پر دغه خپل تقصیر یې اعتراف وکړ، چې د الله تعالی له طرفه وروښنلی هم شو.

قَالَ رَبِّ بِمَآ أَنۡعَمۡتَ عَلَيَّ فَلَنۡ أَكُونَ ظَهِيرٗا لِّلۡمُجۡرِمِينَ ١٧

وویل (موسی) ای ربه ځما! په حق د انعام فضل ستا پر ما (وساته ما) پس چې له سره هیڅېرې نشم مددګار لپاره د ګناهګارانو.

**تفسیر:** یعنې کله چې تا ماته پخپل فضل او کرم د عفوې بشارت رامرحمت کړ، او عزّت، راحت، قدرت او قوت دې راعطا کړ، نو زه د دې د شکریې لامله به له سره د مجرمانو او ګناهګارانو حامي او مرستندوی نه کېږم، ممکن دي چې موسی علیه السلام ته د دغه مستغیث اسرائیلي څه تقصیر هم معلوم شوی وي، او همدغه ته به یې مجرم ویلی وي، یا به یې له مجرمانو څخه کفّار او ظالم خلق مراد وي، یعنې زه ستا دغه راکړې قوّتونه به وروسته له دې نه له سره د دغو خلقو په نصرت او حمایت کې نه لګوم، یا به له مجرمینو څخه شیاطین مراد وي، چې زه به هیڅکله د دوی د جمعیت حمایت نه کوم، څو هغوی ځما په زړه کې دغسې وسوسې واچوي، او دغسې کارونو ته مې ولمسوي، چې وروسته له هغه زه په ندامت او حسرت کې اخته شم، یا به یې هغه اسرائیلي ته د دې لامله مجرم ویلی وي چې هغه د دغه جرم د وقوع سبب ګرځېدلی وو، والله أعلم.

فَأَصۡبَحَ فِي ٱلۡمَدِينَةِ خَآئِفٗا يَتَرَقَّبُ

بیا سبا پاڅېد (موسی) په دغه ښار کې په داسې حال کې چې ویرېدونکی وو (پر ځان خپل) چې انتظار به یې کوو (مدد د رب خپل ته، یا لاره یې کتله د نجات خپل).

**تفسیر:** یعنې موسی علیه السلام انتظار کوي، او لارې ته ګوري چې د دغه مقتول وارثانو به خپله دعوی فرعون ته وړاندې کړې وي، ولید شي چې پر چا دغه جرم اوړي؟ او له ما سره څه سلوک کوي؟.

فَإِذَا ٱلَّذِي ٱسۡتَنصَرَهُۥ بِٱلۡأَمۡسِ يَسۡتَصۡرِخُهُۥۚ قَالَ لَهُۥ مُوسَىٰٓ إِنَّكَ لَغَوِيّٞ مُّبِينٞ ١٨

پس ناڅاپه هغه (اسرائیلي) چې نصرت مدد یې غوښتی وو له دغه (موسی) څخه پرون، اوس بیا ناړې وهي دغه (موسی ته او مرسته ـ مدد ترې غواړي پر بل قبطي باندې)، پس وویل موسی هغه

(اسرائيلي) ته چې: بېشکه ته خامخا بې لارې يې ښکاره (چې پرون دې هغه قبطي راباندې مړ کړ، او اوس بيا راته نارې وهې).

تفسير: يعنې هم هغه اسرائيلي نن له بل کوم سړي سره جنګېده، او لاس يې پرې اچولی وو، نو موسی عليه السلام داسې ورته وويل چې: ته هره ورځ له ظالمانو سره نښلې، او غواړې چې ما هم له هغوی سره په جنګ واچوې، لنډه يې دا چې موسی عليه السلام ورته ورغی لپاره د امداد.

فَلَمَّآ اَنۡ اَرَادَ اَنۡ يَّبۡطِشَ بِالَّذِىۡ هُوَ عَدُوٌّ لَّهُمَا ۙ قَالَ يٰمُوۡسٰٓى اَتُرِيۡدُ اَنۡ تَقۡتُلَنِىۡ كَمَا قَتَلۡتَ نَفۡسًۢا بِالۡاَمۡسِ ۖ اِنۡ تُرِيۡدُ اِلَّاۤ اَنۡ تَكُوۡنَ جَبَّارًا فِى الۡاَرۡضِ وَمَا تُرِيۡدُ اَنۡ تَكُوۡنَ مِنَ الۡمُصۡلِحِيۡنَ ﴿۱۹﴾

پس کله چې اراده وکړه (موسی) چې ونيسي هغه (قبطي) چې وو دښمن د دغو دواړو (يعنې موسی او د دغه اسرائيلي حال دا چې موسی هغه اسرائيلي ته په قهر شوی هم وو، نو) ويې ويل: ای موسی ! آيا اراده لرې د دې چې ووژنې ته (نن) ما لکه چې وژلی دې وو يو نفس (د قبطي) پرون، اراده نه لرې ته (د هيڅ شي) مګر د دې چې شې (ای موسی) زورور په ځمکه (د مصر) کې او اراده نه لرې چې شې ته له اصلاح کوونکيو څخه.

تفسير: يعنې موسی عليه السلام غوښت چې پر هغه ظالم قبطي لاس واچوي، او دغه مظلوم سبطي (اسرائيلي) ترې خلاص کړي، خو سبطي په دې ګمان له موسی عليه السلام څخه وويرېد، کله چې ده راته «غويّ مبين» ويلي دي؛ نو نه چې اوس مې ووژني، ځکه چې دغه سبطي داسې وپوهېد؛ هم هغسې چې په خوله او خبرو سره ماته په غوسه او قهر دی، نو هرومرو لاس يې هم پر ما پورته کېږي، هغه پرونۍ وينه چې تر نن پورې پټه وه، او څوک پرې نه وو خبر چې د هغه قاتل څوک دی؟؛ سبطي ښکاره کړه، کله چې دغه قبطي د هغه سبطي دا خبرې واورېدې؛ نو پوه شو چې هغه قبطي هم دغه موسی وژلی دی، نو ورغی او فرعون يې خبر کړ، او فرعونيانو هم د موسی عليه السلام د وژلو اراده وکړه.

وَجَآءَ رَجُلٌ مِّنۡ اَقۡصَا الۡمَدِيۡنَةِ يَسۡعٰى قَالَ يٰمُوۡسٰٓى اِنَّ الۡمَلَاَ يَاۡتَمِرُوۡنَ بِكَ لِيَـقۡتُلُوۡكَ فَاخۡرُجۡ اِنِّىۡ لَـكَ مِنَ النّٰصِحِيۡنَ ﴿۲۰﴾

او راغی يو سړی له آخره د ښاره په دې حال چې رامنډې يې وهلې ويې ويل: ای موسی ! بېشکه چې مشران مشورې کوي په حق ستا کې لپاره د دې چې ووژني تا (په قصاص د هغه قبطي)، پس ووځه ته (له مصره) بېشکه زه يم تاته له نصيحت کوونکيو (خير غوښتونکيو) نه.

تفسير: يعنې د دغه قتل خبر فرعون ته رسېدلی دی، او هلته سره جرګې او مشورې کوي، چې د غير قوم د يوه ځلمي جرأت تر دغې اندازې پورې رسېدلی دی، چې د شاهي قوم او د سرکاري ملازمانو د يوه فرد قتل ته اقدام کوي، د حکومت ملازمان پر موسی عليه السلام پسې په سرعت وځغلول شول، چې ژر يې پيدا او بندي او په قتل يې ورسوي، له هغه مجمع څخه د يوه نېک سړي په زړه کې پاک الله دغه خبره واچوله څو هغه په تلوار او ديوې لنډې لارې څخه په ځغاسته موسی عليه السلام ته خپل ځان ورسوي، او دی له دغه ماجرا څخه باخبره او داسې يوه مشوره ورته ورکړي، چې ښايي ته همدا اوس له ښاره ووځې !.

فَخَرَجَ مِنْهَا خَآئِفًا يَّتَرَقَّبُ قَالَ رَبِّ نَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۱﴾ وَلَمَّا تَوَجَّهَ تِلْقَآءَ مَدْيَنَ قَالَ عَسٰى رَبِّيْٓ اَنْ يَّهْدِيَنِيْ سَوَآءَ السَّبِيْلِ ﴿۲۲﴾

پس ووت موسی له دغه مصر څخه په دې حال کې چې ویریدونکی وو، کتل به یې (هر طرف ته چې څوک راپسې رانشي)، وویل (موسی) ای ربه څما ! نجات راکړه ته ما ته له قومه ظالمانو (چې فرعون او تابعان یې دي). او کله چې متوجّه شو (موسی) په طرف د مدین؛ ویې ویل: امید دی له رب څما څخه د دې چې وښیي ما ته سمه لاره.

تفسیر: موسی علیه السلام له مصر څخه د هجرت په قصد لاړ شو، لیکن هیڅ یوه لاره او طرف ورته نه وو معلوم، نو له پاك الله څخه یې سوال وکړ چې: په سمه لاره مې برابر کړه !، نو څکه دی د (مدین) په لویه لاره برابر شو، او په خیر او سلامتی سره یې هلته ورسوه، او په مدین کې یې داسې د امن او اطمینان ژوندون ور په برخه کړ، چې په کې ښه مأنوس او متأهل شو، یواځې هم دغومره نه بلکه تر ډېر لرې پورې یې نورې لار ښوونې هم ورته وکړې، او په سمه صافه لاره یې رهي (روان) کړ.

وَلَمَّا وَرَدَ مَآءَ مَدْيَنَ وَجَدَ عَلَيْهِ اُمَّةً مِّنَ النَّاسِ يَسْقُوْنَ ۟ وَوَجَدَ مِنْ دُوْنِهِمُ امْرَاَتَيْنِ تَذُوْدٰنِ ۚ قَالَ مَا خَطْبُكُمَا ۗ قَالَتَا لَا نَسْقِيْ حَتّٰى يُصْدِرَ الرِّعَآءُ ٚ وَاَبُوْنَا شَيْخٌ كَبِيْرٌ ﴿۲۳﴾

او کله چې ورسېد (موسی) اوبو د مدین ته؛ نو ویې موندله پر هغه (کوهي) یوه ډله له خلقو چې اوبه یې ورکولې (مواشیو خپلو ته)، او ویې موندلې رابېرته له دوی څخه دوه ښځې چې رامنع کولې به یې ګډې خپلې (له اوبو نه)، نو وویل (موسی دغو ښځو ته) چې: څه دی حال ستاسې (چې منع کوئ له اوبو ګډې خپلې)؟ وویل هغو (دواړو) چې: اوبه نه ورکوو مونږ (ګډو خپلو ته) څو بېرته لاړ شي (دغه) شپانه، او پلار څمونږ زوړ (د ډېرو کلونو سړی) دی (چې کار یې له لاسه نه کیږي).

تفسیر: مدین له مصر څخه د اتو یا لسو ورځو لرې مسافه کې پروت دی، کله چې دی هلته ورسېد؛ وږی تږی وو، ویې لیده چې خلق پر کوهي راټول دي، او خپل مواشي اوبه کوي، او دوه داسې ښځې یې هم هلته ولیدې چې دغو دواړو خپلې ګډې لرې ایسارې کړې دي، او په شرم او حیاء سره لرې ولاړې وې، په دوی کې دومره یو زور او قوّت نه وو، چې هغه مجمع له خپلې مخې څخه لرې کړي، یا بالذات هغه لویه درنه بوکه له اوبو څخه ډکه او له کوهي څخه یې راوکاږي، او ممکن وو چې دوی به خپلو ګډو ته داسې اوبه ورڅښولې، چې له نورو څخه وروسته پاتې کېدې، نو موسی علیه السلام له دوی نه د انتظار علّت استفسار کړ، هغوی وویل چې: مونږ له ګردو څخه وروسته خپلو مواشیو ته اوبه ورکوو، څکه که څمونږ پلار څلمی او قوي وی؛ نو مونږ به ولې راتلو، او هغه به پخپله راته، او له دغو خلقو سره به یې خپله معامله خلاصوله.

فَسَقٰى لَهُمَا ثُمَّ تَوَلّٰٓى اِلَى الظِّلِّ فَقَالَ رَبِّ اِنِّيْ لِمَآ اَنْزَلْتَ اِلَيَّ مِنْ خَيْرٍ فَقِيْرٌ ﴿۲۴﴾

پس اوبه کړه (موسی رمه) د دغو دواړو بیا یې شا وګرڅوله (ښځو ته او لاړ شو) سیورې ته، نو ویې ویل: ای ربه څما ! بېشکه زه هر هغه څیز ته چې ولېږې ته ما ته له خیره فقیر (محتاج) یم.

تفسیر: یعني ای الله ! زه د خپل هیڅ عمل اجرت له مخلوقه نه غواړم، هو ! که ستا له طرفه کومه ښېګڼه (فائده) راورسیږي؛ زه هغې ته تل محتاج یم، (موضح القرآن) لیکي: «ښځو دی وپېژاند چې دغه سړی د لارې مسافر او

په سيورو کې کيناستونکی پرديسي دی، او له لرې څخه وړی ترې راغلی دی، لاړلې او خپل پلار ته يې دغه ګرد احوال بيان کړل».

فَجَآءَتْهُ إِحْدٰىهُمَا تَمْشِيْ عَلَى اسْتِحْيَآءٍ ۡ قَالَتْ إِنَّ أَبِيْ يَدْعُوْكَ لِيَجْزِيَكَ أَجْرَ مَا سَقَيْتَ لَنَا ۭ

پس راغله دغه (موسی) ته يوه له دواړو چې تګ يې کاوه په (طريقه د) حياء سره، نو وويل (دې موسی ته) چې: بېشکه پلار ځما بولي تا لپاره د دې چې درکړي تاته اجر حق د اوبو کولو ستا (ګلهو) ځمونږ ته.

تفسير: دغه جينۍ داسې راتله لکه چې د شريفې او عفيفې او پاکې ښځې عادت او قاعده وي، وايي چې: دې له ډېره شرمه او حياء خپل مخ په ټکري (څادر) بيخي پېچلی (نغاړلی) وو، او خبرې به يې کولې، موسی عليه السلام د الله تعالی څخه د خير طالب وو، چې يې له خپله فضله په غير متوقعه ډول سره وروليږه، نو ولې به يې نه مانه، پاڅېد او له هغې ښځې سره د هغې د پلار په لوري روان شو، وايي چې د تللو په وخت کې يې دغې جينۍ ته وويل چې: «ته ځما په مخکې مه درومه ! او راپسې راځه، نه چې پر پردی ښځې عمدًا ځما نظر ولوېږي»، لکه چې موسی عليه السلام د مخه شو، او هغه جينۍ ورپسې تله، او په خبرو سره يې ورته د لارې ښوونه کوله، تر څو يې خپل پلاره ته راوست.

فَلَمَّا جَآءَهٗ وَقَصَّ عَلَيْهِ الْقَصَصَ ۙ قَالَ لَا تَخَفْ ۫ نَجَوْتَ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٢٥﴾

پس کله چې راغی (موسی) دغه (د جينکو پلار) ته، او بيان يې کړه پر دغه قصه خپله؛ وويل (د جينکو پلار موسی ته) مه ويرېږه ! نجات دې وموند له قومه ظالمانو (فرعونيانو) نه.

تفسير: موسی عليه السلام خپله ټوله قصه د جينکو پلار ته واوروله، او هغه ده ته ډاډينه او تسلي ورکړه، او ويې فرمايل چې: ته اوس د ظالم قوم د منګولو څخه خلاص شوی، وروسته له دې نه دوی ان شاء الله تاته هيڅ ضرر نشي رسولی، ځکه چې مدين د فرعون د سلطنت له حدوده خارج وو.

قَالَتْ إِحْدٰىهُمَا يٰٓأَبَتِ اسْتَأْجِرْهُ ۡ إِنَّ خَيْرَ مَنِ اسْتَأْجَرْتَ الْقَوِيُّ الْأَمِيْنُ ﴿٢٦﴾

وويل يوې له دغو دواړو: ای پلاره ځما ! مزدور ونيسه دی (لپاره د مېږو ـ ګلهو څرولو)، بېشکه چې غوره د هر هغه چا چې مزدور يې نيسې؛ هغه څوک دی چې قوتناک او امانتګر وي.

تفسير: يعنې په موسی عليه السلام کې دواړه صفات موجود دي، زورور دی چې يواځې لويه تيږه (ګټه) يې د کوهي له سره لرې کړه، چې هغه به په څو تنو لرې کېده، په ډېر قوّت او مېړانه (بهادری) سره يې اوبه وويستلې، اوځمونږ رمه يې په لږ وخت کې اوبه کړه، او ګرده د اوبو ويستونکي مجمع يې سره لرې کړه، او امانت دار دی، چې هيڅ طمع او توقّع نه لري، او ډېر عفيف او يو شريف ځلمی دی، تر دې چې په لاره کې هم له ما ځنې پر مخ ته، چې پر ما يې له سره نظر ونه لګيږي.

قَالَ إِنِّيْٓ أُرِيْدُ أَنْ أُنْكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هٰتَيْنِ عَلٰٓى أَنْ تَأْجُرَنِيْ ثَمٰنِيَ حِجَجٍ ۚ فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ ۚ وَمَآ أُرِيْدُ أَنْ أَشُقَّ عَلَيْكَ ۭ سَتَجِدُنِيْٓ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٢٧﴾

وويل (پلار د جينکو موسی ته) بېشکه زه اراده لرم د دې چې په نکاح درکړم تاته يوه له دغو لوڼو خپلو چې دا دي؛ په دې چې مزدوري وکړې ته ځما لپاره اته کاله، پس که پوره کړه تا لس

کاله؛ نو هغه به ستا له طرفه (له ما سره احسان) وي، او نه لرم زه اراده د دې چې مشقّت واچوم پر تا (په اشتراط د لسو کلونو)، ژر به ومومې ته ما که اراده وفرمايي الله له صالحانو نېکانو (وفا کوونکيو په وعده).

تفسير: ښايي همدغه خدمت د ده د جينۍ مهر وي.

﴿فَإِنْ أَتْمَمْتَ عَشْرًا فَمِنْ عِنْدِكَ﴾ - «پس که پوره کړه تا لس کاله؛ نو هغه به ستا له طرفه له ما سره احسان وي»، يعنې اقلاً اته کاله به څما په خدماتو کې هرومرو مصروفيږې، که دوه کاله نور دې هم خدمت وکړ؛ نو هغه ستا تبرّع ده، او زه خو کوم سخت خدمت له تا څخه نه اخلم، ته به له ما سره اوسېږې، ان شاء الله پخپله به په تجربه درخرګنده شي، چې زه بد طينته سړی نه يم، بلکه د الله تعالی په فضل او کرم سره د نېک بختانو څخه يم، ته به څما په صحبت کې نه خفه کيږې، بلکه د طبيعت د مناسبت لامله به مؤانست درحاصل شي.

قَالَ ذَٰلِكَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ أَيَّمَا الْأَجَلَيْنِ قَضَيْتُ فَلَا عُدْوَانَ عَلَيَّ وَاللَّهُ عَلَىٰ مَا نَقُولُ وَكِيلٌ ﴿٢٨﴾

وويل (موسی پلار د جينکو ته) چې همدا (عهد مقرر شو) په منځ څما او ستا کې، چې هره يوه له دې دواړو نېټو چې پوره کړه ما؛ پس نه به وي زيادت پر ما، او الله پر دغه چې وايو (يې موږ يعنې زه او ته وکيل) ساتونکی شاهد دی.

تفسير: يعنې زه مختار او خپلواک يم، چې اته کاله درسره پاتې کېږم، که لس کاله، په هر حال دا معاهده چې اوس تړلې شوې ده؛ د الله په اعتماد څما خوښه او منظوره ده، زه پاک الله پر دغه معاهده شاهدوم، او دغه معامله ختم کوم، په احاديثو کې راغلي دي چې موسی هم دغه اوږد مدّت (لس کاله) پوره کړ.

فَلَمَّا قَضَىٰ مُوسَى الْأَجَلَ وَسَارَ بِأَهْلِهِ آنَسَ مِنْ جَانِبِ الطُّورِ نَارًا قَالَ لِأَهْلِهِ امْكُثُوا إِنِّي آنَسْتُ نَارًا لَعَلِّي آتِيكُمْ مِنْهَا بِخَبَرٍ أَوْ جَذْوَةٍ مِنَ النَّارِ لَعَلَّكُمْ تَصْطَلُونَ ﴿٢٩﴾ فَلَمَّا أَتَاهَا نُودِيَ مِنْ شَاطِئِ الْوَادِ الْأَيْمَنِ فِي الْبُقْعَةِ الْمُبَارَكَةِ مِنَ الشَّجَرَةِ

پس کله چې پوره کړه موسی نېټه (خپله په اتو يا لسو کلونو)، او رهي (روان) شو سره له عيال خپل (مصر ته) وليد (موسی) له جانبه (د غره) د طور يو اور، وويې ويل عيال خپل ته چې: مدار وکړئ تاسې (په دې ځای کې)، بېشکه زه چې يم ومې ليد يو اور، ښايي ما لره چې راتله وکړم تاسې ته له دې (اور) څخه په خبر (د لارې ورکې)، يا په بخري (سکروټې يا شغلې) له هغه اوره لپاره د دې چې تاسې (پرې) تاوده شئ. پس کله چې راغی (موسی) دغه (اور) ته؛ نو غږ (ورته) وکړی شو له غاړې د هغې کندې چې په ښي طرف (د موسی) کې وه، (دغه غاړه وه) په هغه ټوټه مبارکه کړی شوې کې (له جهته د اورېدو د موسی کلام د الله لره په دې کې) له (هغې) ونې.

تفسير: چې ولاړه وه په غاړه د کندې کې، او د اور لمبې ترې څرګندېږې.

أَنْ يَا مُوسَىٰ إِنِّي أَنَا اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٣٠﴾ وَأَنْ أَلْقِ عَصَاكَ فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَانٌّ وَلَّىٰ مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ يَا مُوسَىٰ أَقْبِلْ وَلَا تَخَفْ إِنَّكَ مِنَ الْآمِنِينَ ﴿٣١﴾ اسْلُكْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوءٍ

داسې چې ای موسی ! بېشکه زه همدا زه الله يم، رب د عالميانو. او بل داسې (غږ پرې وشو چې) وغورځوه همسا خپله (پس وېې غورځوله)؛ نو کله چې وېې ليدله (موسی) دا (عصا) چې خوځېدله ګواکې دا (عصا) يو نری منګری مار ټوپ وهونکی دی؛ نو شا يې کړه، مخ يې واړاوه په دې حال کې چې تښتېدونکی وو (له ويرې)، او بېرته راونه ګرځېد، (بيا پرې غږ وشو د الله تعالی له جانبه داسې چې) ای موسی ! مخ راواړوه او بېرته راوګرځه ! اومه وېرېږه ! بېشکه ته چې يې له امان موندونکيو يې (له وېرې نه او بيخي مأمون يې). ننباسه (ننې) لاس خپل په ګرېوان (د کميس خپل کې)، بيا يې خارج کړه، حال دا چې راوځي به تک سپين بې له کوم عيب (مرض ـ بدی).

تفسير: د دغې رکوع له ابتداء څخه تر ﴿مِنْ غَيْرِسُوْٓءٍ﴾ پورې ګرد (ټول) مفصل واقعات د «طه» په سورت او نورو ځايونو کې تېر شوي دي، هلته دې ولوستل شي !.

﴿وَّاضْمُمْ اِلَيْكَ جَنَاحَكَ مِنَ الرَّهْبِ﴾

او پيوست کړه (سينې) خپلې ته څانګ (يعنې لاس) دې له (جهته) د وېرې.

تفسير: او رانژدې کړه ځان ته يعنې سينې خپلې ته څانګ دې، يعنې لاس دې له جهته د وېرې له مار يا له برص !، يعنې خپل مټ دې له خپلې سينې سره او تخرګ (ترخ) ته نژدې کړه، د مار او د برص او د نورو شيانو وېره به له تا څخه لرې کيږي، ښايي چې د راتلونکې لپاره يې هم د وېرې د ازالې په نسبت يې همدغه ترکيب ورښوولی وي.

﴿فَذٰنِكَ بُرْهَانٰنِ مِنْ رَّبِّكَ اِلٰى فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهٖ﴾

نو دغه دواړه (عصا او يد بيضاء) دوه برهانه (او سندونه په رسالت د تا دي ليږلي شوي) له (طرفه د) رب ستا طرف د فرعون ته او قوم د ده ته.

تفسير: يعنې د «عصا» او «يد بيضاء» معجزې د نبوّت د برهان او سند په ډول درعطاء کړی شوي دي، څو پر دغه وسيله پر فرعون او نورو سبطيانو د حجّت اتمام وکړی شي.

﴿اِنَّهُمْ كَانُوْا قَوْمًا فٰسِقِيْنَ ﴿۳۲﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّىْ قَتَلْتُ مِنْهُمْ نَفْسًا فَاَخَافُ اَنْ يَّقْتُلُوْنِ ﴿۳۳﴾﴾

بېشکه چې دوی دي قوم فاسقان (وتلي له فرمان د الله). ووېل (موسی) ای ربه ځما ! بېشکه زه چې يم وژلی مې دی له دغو (قبطيانو) څنې يو نفس (سړی)، پس ويرېږم چې وبه مې وژني دوی (په قصاص د هغه سره).

تفسير: يعنې که په مجرد د رسېدلو مې ووژني؛ نو ستا دغه دعوت به څرنګه ورسولی شم؟.

﴿وَاَخِىْ هٰرُوْنُ هُوَ اَفْصَحُ مِنِّىْ لِسَانًا فَاَرْسِلْهُ مَعِىَ رِدْاً يُّصَدِّقُنِىْٓ اِنِّىْٓ اَخَافُ اَنْ يُّكَذِّبُوْنِ ﴿۳۴﴾﴾

او ورور ځما هارون هغه ډېر فصيح دی له ما له جهته د ژبې، پس ولېږه هغه هم له ما سره يار مددګار چې تصديق کوي ځما، بېشکه ويرېږم له دې چې دروغجن به وګڼي دوی ما.

تفسير: يعنې که کوم يو بل تصديق او تاييد کوونکی سړی هم راسره وي؛ نو طبعًا به ځمونږ زړونه مضبوط او قوي کيږي، نو د ده د دروغجن شمېرلو په موقع کې کله چې د بحث او مناظرې وار ورسيږي؛ امکان لري چې ځما د ژبې

د لکنت او بندېدلو لامله په خبرو او اترو کې څه موانع او عوائق واقع شي، نو په دغه وخت کې به د هارون رفاقت ماته ډېر نافع او مفيد واقع شي، ځکه چې د ده ژبه له ما څخه ډېره ښه چلېږي، او ښه فصيح او بليغ دی.

قَالَ سَنَشُدُّ عَضُدَكَ بِأَخِيكَ وَنَجْعَلُ لَكُمَا سُلْطَانًا فَلَا يَصِلُونَ إِلَيْكُمَا ۚ بِآيَاتِنَا ۚ أَنتُمَا وَمَنِ اتَّبَعَكُمَا الْغَالِبُونَ ﴿٣٥﴾

وفرمايل (الله) ژر به قوي کړو مونږ مټ ستا په ورور ستا، او وبه ګرځوو مونږ تاسې ته غلبه (او تسلّط پر دښمنانو د تاسې)، پس وبه نه رسيږي دوی تاسې دواړو ته (په ضرر سره) په سبب د معجزو څمونږ سره، تاسې دواړه او هر هغه څوك چې متابعت وکړي ستاسې غالبان به اوسئ (پر دوی باندې).

تفسير: يعنې ما ستا دغه دواړه غوښتنې منظورې کړې، هارون به ستا بازو او مټ وي، او د يوه وزير په شان به ستا سره ملګرتوب کوي، او د فرعون لاس به له سره په تاسې نه رسيږي، او څمونږ د دغو دلائلو او نښو په برکت تاسې او ستاسې ملګري تل غالب او بريالي (کامياب) او دوی سره له خپلو ملګرو تل مغلوب او پړه دي.

فَلَمَّا جَاءَهُم مُّوسَىٰ بِآيَاتِنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّفْتَرًى وَمَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ﴿٣٦﴾

پس کله چې راغی دوی ته موسی سره له معجزو څمونږ چې ښکاره وې وويل (فرعونيانو): چې نه دی دا مګر خو سحر (کوډې) دي په دروغو سره تړلې شوې، او نه دی اورېدلی مونږ دا (سحر يا دعوی د نبوّت) په (زمانو د) پلرونو څمونږ کې چې پخوا تېر دي.

**تفسير:** يعنې د دغو معجزاتو د ليدلو په اثر يې وويل چې: دغه ګردې کوډې او سحر دی، او د هغو خبرو نسبت چې دوی الله ته کوي؛ هغه هم د کوډو خبرې دي، چې دوی له خپله ځانه جوړې کړې دي، او داسې دعوی کوي چې دغه پر ما باندې الله تعالی د وحی په صورت نازلې کړې دي، په واقع کې دغه وحې او الهام هيڅ شی نه دی، او يوازې د سحر او د کوډو اعمال او د سحر تخيّل او افتراء ده، دغه خبرې چې موسی کوي: مثلاً يوه الله تعالی دغه ګرده دنيا پيدا کړې ده، او هم هغه يو الله جل جلاله همدغه دنيا فناء کوي، او بيا يې له سره ژوندی کوي، بيا به حساب او کتاب اخلي، او زه يې رسول ګرځولی او درلېږلی يم او داسې نور، مونږ له خپلو پخوانيو مشرانو او نورو څخه نه دي اورېدلي، او داسې څيز مو له سره غوږو ته نه دی رسېدلی.

وَقَالَ مُوسَىٰ رَبِّي أَعْلَمُ بِمَن جَاءَ بِالْهُدَىٰ مِنْ عِندِهِ وَمَن تَكُونُ لَهُ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٣٧﴾

او وويل موسی چې رب څما ښه عالم دانا دی په هغه چا چې راغلی دی په هدايت (راوړی يې دی) له طرفه د هغه (رب)، او په هغه چا باندې چې شته هغه ته ښه خاتمه په دې دنيا کې، بېشکه شان دا دی چې نه مومي برې ظالمان (چې هدايت ومومي په دنيا او راحت په عقبی کې).

**تفسير:** يعنې الله تعالی په دې باندې ښه عالم دی، چې زه پخپله په د غې دعوی کې رښتين يم، او د هغه له نزده مې هدايت راوړی دی، نو ځکه آخره خاتمه او انجام به مې ښه وي، هغه خلق چې د الله تعالی دغه ښکاره د قدرت نښې

وينې، او د صداقت دلائل اوري، او د بې انصافۍ له مخې يې تكذيب كوي، دوى له سره برى نه مومي، او د كاميابۍ مخ نه ويني، او په آخره خاتمه كې دوى له ذلّت او ناكامۍ سره مخامخ كېدونكي دي.

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَٰٓأَيُّهَا ٱلْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرِى فَأَوْقِدْ لِى يَٰهَٰمَٰنُ عَلَى ٱلطِّينِ فَٱجْعَل لِّى صَرْحًا لَّعَلِّىٓ أَطَّلِعُ إِلَىٰٓ إِلَٰهِ مُوسَىٰ وَإِنِّى لَأَظُنُّهُۥ مِنَ ٱلْكَٰذِبِينَ ﴿٣٨﴾

او ووېل فرعون: اى ډوليه د مشرانو (د اهل د مصر !) نه پېژنم زه تاسې ته كوم معبود (چې عبادت ورته كوئ) بې له ما څخه، پس بل كړه اور څما لپاره اى هامانه پر خټې باندې (خښتې راته پخې كړه) پس وګرځوه جوړه كړه څما لپاره ماڼۍ لوړه (اوچته) ښايي ماته چې وخېژم الله د موسى ته (وئ ګورم چې شته؟ كه نشته؟)، او بېشكه خامخا زه ګمان كوم پر موسى له دروغجنانو (په دعوى د بل معبود كې بې له مانه).

تفسير: يعني خپل وزير هامان ته يې ووېل چې د ډېرو كلكو او ښو خښتو څخه يوه پخه او هسكه ماڼۍ را جوړه كړه چې اسمان ته نژدې شي څو زه پر هغه پاس وخيژم او د موسى رب وګورم چې چيرته دى، دايې دروغ وګڼله چې الله تعالى بره دى، نو څكه يې د تمسخر په ډول دا خبره وكړه.

وَٱسْتَكْبَرَ هُوَ وَجُنُودُهُۥ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ وَظَنُّوٓا۟ أَنَّهُمْ إِلَيْنَا لَا يُرْجَعُونَ ﴿٣٩﴾ فَأَخَذْنَٰهُ وَجُنُودَهُۥ فَنَبَذْنَٰهُمْ فِى ٱلْيَمِّ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٤٠﴾

او كبر وكړ دغه (فرعون) او لښكرو د دغه (فرعون) په څمكه (د مصر) كې په ناحقه سره (بې له استحقاقه)، او ګمان وكړ دوى د دې چې بېشكه دوى به مونږ ته نه راګرځول كيږي (په قيامت كې). پس راونيوه مونږ هم دغه (فرعون) او (هم) لښكرې د دغه (فرعون)، پس وغورځول مونږ دوى (ټول) په سيند كې (پس غرق شول)، نو وګوره (ته اى محمده !) چې څرنګه وو عاقبت (آخره خاتمه) د ظالمانو.

تفسير: يعني له خپلې خاتمې او انجامه بالكل غافل شو، او په خپل مملكت كې يې په تكبّر او غرور لاس پورې كړ، او په دې ونه پوهېد چې بل د ده سر ماتوونكى او غاړه څېښونكى هم موجود دى، بالآخر قهّار الله دى سره د ده د لاوو لښكر د قُلزم په بحيره كې غرق كړ، څو دغه لويه واقعه د يادګار په شان نورو هغو بدبختو ظالمانو ته پاتې شي، چې له انجامه بې خبره او غافل دي، او ښه وپوهيږي چې د دوى خاتمه به همداسې كيږي، د دغه غرق او نورو ورپورې تړلې خبرو تفصيلات پخوا له دې نه هم تېر شوي دي.

وَجَعَلْنَٰهُمْ أَئِمَّةً يَدْعُونَ إِلَى ٱلنَّارِ وَيَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ لَا يُنصَرُونَ ﴿٤١﴾

او ګرځولي وو مونږ دوى پېشوايان (د ګمراهۍ په دنيا كې) چې بولي دوى (تابعان خپل په بدو عقيدو او عملونو سره) د اور طرف ته، او په ورځې د قيامت كې وبه نه كړى شي مدد (له دوى سره په دفع د عذاب كې له دوى نه).

تفسير: يعني دلته په ضلالت او طغيان كې له ګردو څخه وړاندې او مقدم وو، او خلقو ته به يې د دوزخ په لوري بلنه كوله، هلته به هم دى د نورو دوزخيانو امام او مشر وي، لكه چې (د ۱۱ جزء د هود سورت په (۹) ركوع (۹۸) آيت كې) مسطور دي: ﴿يَقْدُمُ قَوْمَهُۥ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ فَأَوْرَدَهُمُ ٱلنَّارَ وَبِئْسَ ٱلْوِرْدُ ٱلْمَوْرُودُ﴾ يعني د دې ځاى لښكر به يې هلته هيڅ په كار نه

ورځي، نه به د چا له لوري كوم امداد او معاونت وررسيږي، دی به سره له خپل لاوو لښكر ګرد په دوزخ كې غورځول كيږي، هيڅوك به د دوی خلاصوونكي نه وي.

وَاَتۡبَعۡنٰهُمۡ فِىۡ هٰذِهِ الدُّنۡيَا لَعۡنَةً‌ ۚ وَيَوۡمَ الۡقِيٰمَةِ هُمۡ مِّنَ الۡمَقۡبُوۡحِيۡنَ ۝٤٢

او تابع (لازم) كړ مونږ له دوی سره په دغه (لږ خسيس ژوندون د) دنيا كې لعنت لرېوالی (له رحمته)، او په ورځ د قيامت كې به وي دوی له قبيح (لرې له رحمت ـ او بد څېرو كړی شويو څخه).

تفسير: يعنې د عُقبا بدي او بد انجام خو بېل دی، په همدغه دنيا كې تر هغه پورې چې خلق اوسيږي، پر داسې كسانو لعنت وايي.

وَلَقَدۡ اٰتَيۡنَا مُوۡسَى الۡكِتٰبَ مِنۡۢ بَعۡدِ مَاۤ اَهۡلَكۡنَا الۡقُرُوۡنَ الۡاُوۡلٰى

او خامخا په تحقيق وركړی وو مونږ موسی ته كتاب (تورات) وروسته د هغه چې هلاك كړي وو مونږ (اهل د) زمانو ړومبنيو (لكه قوم د نوح، لوط او نور).

تفسير: د تورات له نزوله وروسته پر دنيا داسې د اهلاك او د افناء عذاب ډېر لږ راغلی دی ځكه چې د سماوي اهلاك په ځای د جهاد طريقه مشروع كړی شوې ده، ځكه چې څه نه څه خلق هرومرو پر شرعي احكامو قائم اوسيږي.

بَصَآئِرَ لِلنَّاسِ وَهُدًى وَّرَحۡمَةً لَّعَلَّهُمۡ يَتَذَكَّرُوۡنَ ۝٤٣

حال دا چې سبب د انوارو وو لپاره د خلقو، او سمه لار ښوونكی او رحمت وو لپاره د هغو (كسانو چې ايمان يې پرې راوړی دی) ښايي چې دوی پند واخلي پرې.

تفسير: يعنې (تورات) چې موسی عليه السلام ته وركړی شوی دی؛ لوی فهم او بصيرت عطاء كوونكی او خلقو ته د هدايت پر سمه صافه لاره بيوونكی او د رحمت مستحق ګرځوونكی يو كتاب وو، څو خلق هغه ولولي، او د الله تعالی په يادو اوسيږي، او د الله تعالی احكام ياد كړي، پند او نصيحت ترې حاصل كړي، رښتيا خو دا ده چې وروسته له عظيم الشأن قرآن څخه په هدايت كې د (تورات) شريف درجه ده، او نن ورځ چې هغه د خپلو تابعانو له لاسه ضايع شوی دی، همدغه پاك قرآن د (تورات) د ضروري علومو او هدايت حفاظت كوي.

وَمَا كُنۡتَ بِجَانِبِ الۡغَرۡبِىِّ اِذۡ قَضَيۡنَاۤ اِلٰى مُوۡسَى الۡاَمۡرَ وَمَا كُنۡتَ مِنَ الشّٰهِدِيۡنَ ۝٤٤

او نه وې ته (حاضر ای محمده ! له موسی سره) په جانب (د هغه غره چې) غربي (وو له موسی څخه په وخت د مناجات كې) هغه وخت چې ولېږه مونږ طرف د موسی ته امر (حكم د رسالت)، او نه وې ته له حاضرينو (عند الوحي چې دغه قصه دې له خپلو ليدلو بيان كړې وی).

تفسير: يعنې د طور د غره له غربي جانبه چېرې چې موسی ته نبوّت او (تورات) ورعطاء شوی دی.

وَلٰكِنَّاۤ اَنۡشَاۡنَا قُرُوۡنًا فَتَطَاوَلَ عَلَيۡهِمُ الۡعُمُرُ‌ۚ

وليكن مونږ پيدا مو كړل اهل د زمانو (ډېر وروسته له موسی) پس اوږده شول پر دوی عمرونه.

تفسير: يعني ته د هغه وخت واقعات په داسې صحت او صفايي ـ بسط او تفصيل سره بيانوې، لکه چې هم هغلته له «طور» سره ولاړ وې، او دغه ګرد واقعات دې پخپلو سترګو سره ليدلي وي، حال دا چې ستاسې عدم الوجود په هغې موقع کې يوه ښکاره او ظاهره خبره ده، او برسېره پر دې هم ټول عالم خبر دی، چې تاسې امّي يئ، د کوم عالم په صحبت کې هم نه يئ اوسېدلي، او نه د صحيحو او ثقه وو واقعاتو کوم ښه جيد عالم په مکې معظمې کې موجود د وو، نو سره له دې دغه خبره د غور او دقّت لايقه او وړ (لايقه) ده، چې دغه علوم او حقايق له کوم ځای تاسې ته راغلل، حقيقت دا دی چې د دنيا پر اقوامو ډېر مدّتونه او قرنونه تېر شوي دي، چې د زمانو په تيريدو مروره هغه علوم بيخي منحرف او مندرس او هغه حقائق محو او اضاعه او له ياده ووتل، نو ځکه د هغه عليم او خبير اراده په دی باندې مقتضی شوه چې د يو امي له ژبې څخه هغه هېر شوی سبق بيا د خلقو په ياد ورکړ شي، او د هغو عبرتناکو او موعظت ورکوونکيو واقعاتو داسې يوه صحيحه نقشه د دنيا خلقو ته ور وړاندې کړی شي، چې د هغې له ليدلو څخه د دغې خبرې منل او تسليم ته غاړه کيږدي؛ چې دغه د هم هغه واحد احد الله کلام دی.

وَمَا كُنتَ ثَاوِيًا فِىٓ أَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوا۟ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتِنَا وَلَٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِينَ ﴿٤٥﴾

او نه وې ته (ای محمده !) اوسېدونکی په اهل د مدين کې چې لوستل به دې پر دوی باندې آيتونه ځمونږ، وليکن مونږ چې يو ـ يو مونږ ليږونکي (تا لره لپاره د دغې قصې په وحي سره).

تفسير: يعني موسی عليه السلام ته هغه واقعات چې وروسته د «مدين» له هجرت څخه ورپېش شوي دي؛ ته د هغو واقعاتو بيان په داسې ښه ډول او صحت سره کوې چې له هغه څخه داسې ځرګنديږي چې ګواکې تاسې په هغه وخت کې سره د نبوّت له شانه هلته مسکون وئ.

وَمَا كُنتَ بِجَانِبِ ٱلطُّورِ إِذْ نَادَيْنَا وَلَٰكِن رَّحْمَةً مِّن رَّبِّكَ

او نه وې ته (ای محمده !) په جانب د طور کله چې غږ وکړ مونږ (موسی ته)، وليکن (لېږلی يې مونږ ته ای محمده !) رحمت له طرفه د رب ستا.

تفسير: کله چې پر موسی عليه السلام داسې غږ وشو چې: ﴿إِنِّىٓ أَنَا ٱللَّهُ رَبُّ ٱلْعَٰلَمِينَ﴾ ته خو هلته ولاړ نه وې؟ او دغه غږ خو دې نه دی اورېدلی؟ دغه د الله تعالی انعام او اکرام دی چې ته يې پر دغو واقعاتو او حقائقو مطلع کړې، او ستا سره يې هم همداسې يو وضعيت او رعايت وفرمايه، لکه چې له موسی سره شوی وو، ګواکې په «جبل النّور» کې چېرې چې د «حراء» غار دی، او په مکه معظّمه او مدينه منوره کې د «جبل الطور» او د «مدين» واقعات بيا له سره اعاده او تکرار شول.

لِتُنذِرَ قَوْمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٍ مِّن قَبْلِكَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٤٦﴾

(لپاره) د دې چې وويروې ته هغه قوم چې نه دی راغلی دوی ته هيڅ ويروونکی (له عذابه) پخوا له تا (ای محمده !) لپاره د دې چې دوی پند واخلي پرې.

تفسير: يعني د عربو خلقو ته دغه شيان وروښيه ! او دوی له دغو خطرناکو عواقبو څخه خبردار کړه !، ممکن دي چې دوی دغه خبرې واورې، او په ياد يې ولري، او پند او نصيحت ترې واخلي.

تنبيه: ﴿مَّآ أُنذِرَ ءَابَآؤُهُمْ﴾ څخه به «آباؤهم الأقربون» مراد وي، والله أعلم.

وَلَوْلَآ أَن تُصِيبَهُم مُّصِيبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا۟ رَبَّنَا لَوْلَآ أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ ءَايَٰتِكَ وَنَكُونَ مِنَ ٱلْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٧﴾

او كه چېرې نه وى دا چې وبه رسيږي دوى ته مصيبت (غم عذاب) په سبب د هغو (ګناهونو) چې پخوا ليږلي دي لاسونو د دوى، پس وبه وايي (دغه كفّار): اى ربه څمونږ! ولې دې نه رالېږه تا مونږ ته كوم رسول (چې ستا احكام يې مونږ ته راوړي وى)، پس متابعت به كړى وو مونږ د آيتونو ستا او شوي به وو مونږ له مؤمنانو (په تا او په هغه رسول ستا باندې). (كه دا خبره نه وى؛ نو نه به مو وى لېږلى ته دوى ته ليكن لېږلى مو يې چې عذر يې پاتې نشي).

تفسير: يعنې د رسول الله صلى الله عليه وسلم بعثت په دوى كې د دوى خوش قسمتي ده، كه بې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له لېږلو څخه مو دوى ته پر دغو ظاهرو او باهرو طغيانونو او بې عقليو او بې ايمانيو سزا وركولى؛ خو دغه هم عين الانصاف او عدل وو، ليكن الله تعالى پر دوى احسان وفرمايه، او د هيڅ قسم معقول عذر او پلمو (تدبيرونو) وړاندې كولو لپاره يې موقع ورپرې نه ښوده، څكه امكان يې درلود (لرلو) چې د سزا وركولو په وخت كې به يې ويل چې: «الهه! مونږ ته خو دې كوم رسول نه دى رالېږلى تر څو يې مونږ پر خپلو اغلاطو پوهولي وى، او اقلاً سمه لاره يې راښوولى او څه تنبيه يې راكولى، او دغه دى چې مونږ دې بې خبره په دوزخ كې وغورځولو، هو! كه كوم نبي دې راغلى وى؛ نو عالم به ليده چې مونږ په څه اخلاص او عقيدت سره له پخوا ايماندارانو څخه ثابت كيدو».

فَلَمَّا جَآءَهُمُ ٱلْحَقُّ مِنْ عِندِنَا قَالُوا۟ لَوْلَآ أُوتِىَ مِثْلَ مَآ أُوتِىَ مُوسَىٰٓ

پس كله چې راغى دغو (كفّارو) ته حق قرآن له جانبه څمونږ؛ نو ويې ويل (دغو كفارو): ولې نه دي وركړى شوي (محمد ته معجزې) په شان د هغو (معجزو) چې وركړى شوې وې موسى ته (لكه عصا او يد بيضاء).

تفسير: يعنې كه مو رسول نه لېږه؛ نو داسې به يې ويل چې: ولې دې رسول راته ونه لېږه؟ اوس چې داسې رسول ورمبعوث شوى دى، چې له ګردو انبياوو څخه په شان او رُتبه كې لوى دى، نو وايي صاحبه! مونږ دې هله منو، كله چې وګورو چې د موسى عليه السلام په شان له تا څخه د «عصا او يد بيضاء» او نور معجزات راښكاره شي، حال دا چې هغه ته (تورات) هم يو ځلي د يوه كتاب په شكل ورنازل شوى وو، او ته دې خپل كتاب د دوو دوو څلورو څلورو آيتونو په شكل راوړاندې كوې.

أَوَلَمْ يَكْفُرُوا۟ بِمَآ أُوتِىَ مُوسَىٰ مِن قَبْلُ ۖ

آيا نه وو كافران شوي (جنس د كفّارو) په هغو (معجزو) چې وركړى شوې وې موسى ته پخوا (له نزوله د دغه قرآن).

تفسير: يعنې د موسى عليه السلام كتاب او معجزات مو چېرې ټول سره منلي وو، د هغه په نسبت مو هم شبهات ايستل، او ورته مو «سحر مفترى» ويل، لكه چې اوس په يوه دوه ركوع مخكې تېر شو، هو! هر څوك چې غواړي د پاك الله احكام ونه مني؛ نو په هره يوه خبره يو نه يو شى وايي، او راز راز احتمالات د هغه په نسبت پيدا كوي.

قَالُوا۟ سِحْرَانِ تَظَٰهَرَا وَقَالُوٓا۟ إِنَّا بِكُلٍّ كَٰفِرُونَ ﴿٤٨﴾

وويل (منكرانو په حق د موسى او محمد کې چې خاوندان د) سحر دي، مدد کوي يو د بله، او ويې ويل چې: بېشکه مونږ په هر يوه (د دې دواړو انبياوو) کافران يو.

تفسير: کله چې موسى عليه السلام د معجزو ذکر ورته وشو نو دا يې ويل چې دی دواړو انبياؤ سحر راوړی دي او مونږ يې نه منو.

قُلْ فَأْتُوا بِكِتَٰبٍ مِّنْ عِندِ ٱللَّهِ هُوَ أَهْدَىٰ مِنْهُمَآ أَتَّبِعْهُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٩﴾

ووايه (اى محمده دوى ته) پس راوړئ تاسې يو داسې کتاب له جانبه د الله، چې هغه ښه لاره ښوونکى وي له دغو دواړو کتابونو چې متابعت وکړم زه د هغه (کتاب) که چېرې يئ تاسې صادقان رښتيني، په دغه دعوى ستاسى کې.

تفسير: يعني په اسماني کتابونو کې له ګردو ځنې لوى او مشهور کتابونه هم دغه دوه کتابونه دي، چې له هغوى سره سيالي او برابري بل هيڅ يو کتاب نشي کولى، که دغو دواړو ته جادو وايئ؛ نو تاسې بل کوم د الله تعالى کتاب راوړاندې کړئ چې له دغو څخه ښه او ډېر هدايت لرونکى وي، په فرض محال کې تاسې داسې کوم کتاب راوړئ؛ نو زه به د هغه متابعت وکړم، ليکن تاسې داسې کتاب تر قيامته پورې نشئ راوړئ، له دې نه به زياته بدبختي څه وي، چې تاسې پخپله له ربّاني هدايته قطعًا بې برخې يئ !، او دغه مقدّس کتاب ته چې سره له هدايت درغلى دى؛ کوډې وايئ !، او نه يې منئ، کله چې دغه کتاب د يوه انسان جوړ کړى جادو دى؛ نو تاسې د ګرد جهان جادوګران راټول کړئ، او له هغوى څخه له دغه ځنې لوى جادو جوړ کړئ، ځکه چې جادو خو داسې يو شى نه دى، چې د هغه مقابله به امکان نه لري.

فَإِن لَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكَ فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يَتَّبِعُونَ أَهْوَآءَهُمْ ۚ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنِ ٱتَّبَعَ هَوَىٰهُ بِغَيْرِ هُدًى مِّنَ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥٠﴾

پس که چېرې ونه منله دوى خبره ستا؛ پس پوه شه چې بېشکه همدا خبره ده چې متابعت کوي دوى د خواهشونو خپلو (بې دليله)، او څوک دى ډېر ګمراه له هغه چا چې متابعت کوي د خواهش خپل بې هدايته له ښوولو د لارې له (طرفه د) الله، بېشکه چې الله نه ښيي سمه لاره قوم ظالمانو ته (چې تابع وي د نفسونو او هواوو خپلو بې دليله).

تفسير: يعني کله چې دغه خلق نه هدايت قبلوي، او نه د هغه په مقابل کې بل کوم شى وړاندې کولى شي؛ نو همدغه وضعيت د دغې خبرې دليل دى، چې دوى داسې مقصود نه لري، چې د هدايت په لاره لاړ شي، محض پر خپلو نفساني خواهشاتو تګ کوي، او هر شى يې چې زړه غواړي؛ هغه مني، او هر هغه شى چې د خپلې مرضى او غوښتنې څخه مخالف او چپ وموم‌ي؛ هغه نه مني، او ترديدوي يې، نو دلته دغه راوښوول کيږي چې داسې هوا پرستانو ظالمانو ته څرنګه هدايت ورکاوه کيږي؟ د الله تعالى عادت د هغه قوم پر هدايت جاري دى، چې د هدايت موندلو اراده ولري، او محض هوا او هوس د حق او حقانيت معيار ونه ګڼي.

وَلَقَدْ وَصَّلْنَا لَهُمُ ٱلْقَوْلَ لَعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُونَ ﴿٥١﴾

او خامخا په تحقيق پرله پسې لېږلې ده مونږ دوى ته خبره (د پند چې قرآن دى) لپاره د دې چې دوى پند واخلي.

تفسیر: یعنې ځمونږ د وحیې سلسله لا له پخوا څخه جاري ده، د یوې وحې په تصدیق او تایید مو بله وحې ورپسې لېږلې ده، او قرآن مو هم په تدریج سره نازل کړی، او په یوه آیت پسې بل آیت تل راځي، مقصد دا دی چې د کافي غور کولو او د پوهېدلو موقع په لاس درشي، او د هغه په یادولو کې درته آساني او سهولت وي.

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِهٖ هُمْ بِهٖ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَاِذَا يُتْلٰى عَلَيْهِمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِهٖٓ اِنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّنَآ اِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلِهٖ مُسْلِمِيْنَ ﴿۵۳﴾

هغه کسان چې ورکړې دی مونږ دوی ته کتاب پخوا له دغه (قرآنه) دوی په دغه (قرآن) ایمان راوړي. او کله چې ولوست شي (دا قرآن) پر دوی باندې؛ نو وایي دوی چې: ایمان راوړی دی مونږ په دغه (قرآن چې) حق دی (راغلی دی) له (طرفه د) رب ځمونږ، بېشکه مونږ چې وو پخوا له نزوله د دغه (قرآن) مسلمانان (په دغه قرآن باندې).

تفسیر: یعنې د دغو جاهلانو مشرکانو حال داسې دی چې نه پخواني کتابونه مني، او نه د وروستنو کتابونو منونکي دي، د دوی په مقابل کې هغو حق پسندو او انصاف خوښوونکو کتابیانو ته وګورئ چې دوی هغه دواړه مني، پخوا له دې نه یې په تورات او انجیل یقین لرلو، کله چې پاک قرآن نازل شو؛ نو ژر یې تصدیق وکړو، چې بلا شبهه دغه هم حقّاني اسماني کتاب دی، چې ځمونږ د الله له جانبه نازل شوی دی، مونږ په ده باندې هم د خپل یقین او اعتماد اعلان کوو، مونږ خو پخوا له دې نه هم د الله تعالی خبرې منلې دي، او اوس یې هم منو، في الحقیقت مونږ له نن ورځې څخه نه یو مسلمانان ـ بلکه لا له پخوا مسلمانان وو، ځکه چې مونږ په خپلو پخوانو کتابونو هم ایمان لرلو، چې په هغو کې د مخه د دغه آخر الزمان نبي او د دغه عظیم الشان فرقان په متعلق صاف صاف بشارات موجود وو، لهذا په هغو وړاندوینو مونږ پخوا له دې نه بالاجمال مؤمنان وو، اوس چې دغه تفصیل مو په خپلو سترګو ولیدو؛ لا پرې مسلمانان شو.

اُولٰٓئِكَ يُؤْتَوْنَ اَجْرَهُمْ مَّرَّتَيْنِ بِمَا صَبَرُوْا

دغه (یهودان او نصرانیان چې ایمان یې راوړی دی په قرآن)؛ ور به کړ شي دوی ته اجر د دوی دوه کرته، په سبب د دې چې صبر کړی وو دوی (او پر خپل ایمان قائم وو په دې دواړو کتابونو).

تفسیر: یعنې په غُرور او استغناء یې د حق له قبوله مخ نه دی اړولی، بلکه هر کله چې حق او صداقت ورسیږي؛ بې تکلّفه د تسلیم او اطاعت غاړه ورته ږدي.

وَيَدْرَءُوْنَ بِالْحَسَنَةِ السَّيِّئَةَ

او دفع کوي دوی په حسنه نېکۍ سره سیئه بدي.

تفسیر: یعنې که بل څوک له ده سره بدي کوي؛ دی له هغه سره نیکي او احسان، مروت او شرافت کوي، یا یې دا مطلب که چېرې له دوی نه کوم بد کار صادریږي؛ نو د هغه تدارک په نېکۍ سره کوي، څو د حسناتو پله پر سیئاتو درنه شي.

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۵۴﴾

او له ځینو د هغو مالونو چې ورکړي دي مونږ دوی ته صرفوي یې (په لاره د الله کې).

تفسیر: او له هغه حلال مال چې پاک الله ورته عطاء کړي دي؛ زکات ورکوي، صدقات او خیرات اداء کوي، له أقاربو او خپلوانو سره مرسته او امداد کوي، لنډه دا چې په حقوق العباد کې هم له سره قصور او لنډون نه کوي.

وَإِذَا سَمِعُوا اللَّغْوَ أَعْرَضُوا عَنْهُ وَقَالُوا لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ لَا نَبْتَغِي الْجَاهِلِينَ ﴿۵۵﴾

او کله چې واوري دوی کومه چټي (بېکاره) خبره؛ نو څنګ کوي دوی له هغې نه، او وايي (هغو چټي ـ بېکاره ويونکيو ته): دي مونږ ته عملونه ځمونږ (له حلمه او صبره)، او دي تاسې ته عملونه ستاسې (له حماقته او بد ويلو)، سلام دی پر تاسې (له طرفه ځمونږ له کنځلو او طعنو) نه غواړو مونږ (مجلس او طريقه) د جاهلانو.

**تفسير:** يعني که کوم جاهل لغو خبرې کوي؛ نو دی له هغه سره نه لګيږي، او ورته وايي چې: بس دی خانه ! ستا د دغې خبرې جواب مونږ له لرې څخه په سلام اچولو سره درکوو، دغه د جهالت او ناپوهې وضعيت مونږ تاسې ته در پرېږدو، مونږ پر برېږده چې پخپلو کارونو کې مشغول اوسو، ستاسې اعمال به ستاسې په مخ کې او ځمونږ اعمال به ځمونږ په مخ کې راځي، مونږ ته د دې خبرې هيڅ ضرورت نه دی پاتې چې خامخا به ستاسې غوندې له ناپوه خلقو سره لګيږو.

إِنَّكَ لَا تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ

بېشکه ته (ای محمده !) نشې ښوولی (لاره حقه) هغه چاته چې خوښ وي ستا، وليکن الله سمه صافه لاره ښيي هغه چاته چې اراده وفرمايي (د سمې لارې ښوولو يې).

**تفسير:** شاه صاحب ليکي چې: «محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل تره ابو طالب لپاره ډېر کوښښ وکړو، چې د مرګ په وخت کې د اسلام کلمه ولولي، مګر هغه دغه خبره ونه منله، نو د هغه په نسبت دغه آيت نازل شو» (موضح) يعنې له هغه چا سره چې ته طبيعي محبّت لرې، يا ستا زړه غواړي چې هغه هدايت ومومي؛ نو دغه خبره ضروري نه ده چې هم هغسې واقع شي، ستا کار يواځې لارښوونه ده، پاتې شو دغه کار چې کوم يو سړی پر هغه لاره درومي او د مقصود تر منزل پورې رسيږي؟ او کوم يو نه رسيږي؟ دغه ستا د اختيار او له قبضې څخه خارج دی، الله تعالى اختيار لري چې د هر چا په نسبت اراده وفرمايي؛ هغه ته د قبول الحق او وصول الى المطلوب توفيق ورکړي.

وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ ﴿۵۶﴾

او همدغه (الله) ښه عالم دی په سمه صافه لاره موندونکيو باندې.

**تفسير:** هيڅ يو سړی د دغې خبرې واک او صلاحيت نه لري، چې بل څوک پر سمه صافه لاره روان کړي، بلکه څوک پر دغه خبره علم هم نه لري، چې کوم يو پر سمه لاره راتلونکی دی؟ يا د راتللو استعداد او لياقت لري؟، په هر حال په دغه آيت کې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تسلي ورکړی شوې ده، چې تاسې د جاهلانو په دغو چټي (بېکاره) ويناوو او د ضد او عناد پر شورماشور يا د خپل خاص اعزه او اقارب پر نه مسلمانېدو مه متأثر او مه غمجن کېږئ !، هومره چې ستاسې پر ذمه فرض دی؛ هغه اداء کړئ !، د خلقو استعدادات مختلف دي، او دغه خبره د الله تعالى په اختيار او علم کې ده، چې د هغوی څنې کوم يو پر سمه لاره راوستل کيږي.

وَقَالُوا إِنْ نَتَّبِعِ الْهُدَىٰ مَعَكَ نُتَخَطَّفْ مِنْ أَرْضِنَا

او وايي (کفّارد مکې): که چېرې متابعت وکړو مونږ د هدايت له تا سره (او ايمان په تا راوړو)؛ نو وبه تښتول شو (او ژر به وشړل شو) له ځمکې خپلې نه.

تفسير: له هدايت ځني د انسان منع کوونکي څو شيان دي، مثلاً د ځان نقصان، د مال خوف، لکه چې د مکې معظمې مشرکانو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ويلي وو: بېشکه چې مونږ په دې باندې ښه پوهېږو، چې تاسې پر حقاني دين يئ، ليکن که مونږ د اسلام دين قبول کړو، او له تاسې سره يو ځای شو؛ نو ګرد عرب به ځمونږ دښمنان شي، او د چارچاپېر ګرد اعراب به پر مونږ هجوم او يرغل راوړي، او ټول به سره يو ځای کيږي، او مونږ به خپله يوه نمړۍ کړي، نه به مو ځان سلامت پاتې شي، او نه به مو مال او دولت مأمون او مصئون پاتې وي، د همدغه ځواب د آيت په راتلونکې ټوټه کې داسې فرمايي:

اَوَلَمۡ نُمَكِّنۡ لَّهُمۡ حَرَمًا اٰمِنًا يُّجۡبٰۤى اِلَيۡهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىۡءٍ رِّزۡقًا مِّنۡ لَّدُنَّا وَلٰـكِنَّ اَكۡثَرَهُمۡ لَا يَعۡلَمُوۡنَ ﴿۵۷﴾

آيا نه دي ورکړى (ځای) مونږ دوی ته داسې حرم، چې په امان دی (له قتل او غارته)، راچلولې کېدې (يا راچلولى کيږي) دي (حرم) ته (له هر طرفه) مېوې (لپاره) د هر څيز، رزق د دوی له جانبه ځمونږ، وليکن اکثر د دوی چې دي نه پوهيږي (په حق).

تفسير: شاه صاحب فرمايي: «د مکې معظّمې خلقو به ويل: که مونږ مسلمانان شو؛ نو د ټول عربستان مسکونين به له مونږ سره دښمنان شي، الله تعالى فرمايي: که اوس تاسې د هغوی د دښمنۍ او لاس غځولو څخه د چا په پناه کې ناست يئ؟ همدغه د حرم ادب مانع دی، چې سره له دغې سختې دښمنۍ او عداوت چې تاسې يې يو له بله سره لرئ؛ اطرافي اعراب پر تاسې يرغل او هجوم نه راوړي، چې تاسې له مکې معظّمې څخه د باندې وباسي، هغه الله چې اوس دغه ځای يې تاسې ته حرم ګرځولى دی، په هغه وخت کې هم تاسې ته پناه درکوونکی دی (موضح).

وَكَمۡ اَهۡلَـكۡنَا مِنۡ قَرۡيَةٍۢ بَطِرَتۡ مَعِيۡشَتَهَا‌ۚ فَتِلۡكَ مَسٰكِنُهُمۡ لَمۡ تُسۡكَنۡ مِّنۡۢ بَعۡدِهِمۡ اِلَّا قَلِيۡلًا‌ ؕ وَكُنَّا نَحۡنُ الۡوٰرِثِيۡنَ ﴿۵۸﴾

او څومره (ډېر) هلاک کړي دي مونږ له (اهل د) کليو (او ښارونو) چې سرکشي يې کړې وه په معاش خپل کې، پس دا دي کورونه د دوی چې نه ده کړی شوې هستوګنه په کې پس له (اهلاک د) هغوی مګر لږ وخت (چې کوم مسافر کومه شپه هلته دمه کړې ده)، او يو مونږ همدا مونږ وارثان.

تفسير: يعني د عربو له ښمنى څخه ولې ويريږئ، د الله تعالى له عذابه وويريږئ، آيا تاسو نه ګورئ او غور او دقّت نه کوئ، چې له تاسې څخه پخوا څومره لوی اقوام تېر شوي دي، چې هغوی ګرد پخپل عيش عشرت او خوښې مست او مغرور وو، نو هر کله چې هغو د تکبّر ، لويي او سرکښۍ لاره ځان ته غوره کړه؛ نو وګورئ چې پاک الله دوی څرنګه تباه ـ برباد او فنا کړل، چې نن ورځ د دنيا په مخ کې د هغوی نوم او نښه هم نه ده پاتې، تش دغه ويجاړې مېنې او کنډوالې يې پاتې دي، چې په هغوی کې هيڅ يو هستېدونکى نشته، پرته له دې نه چې کوم مسافر کومه شپه هلته کيني، او خپله دمه ونيسي، يا کوم پوه او هوښيار سړی د الله د قُدرت د دغه عبرتناکې منظرې د کتلو لپاره هلته ودريږي.

وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهۡلِكَ الۡقُرٰى حَتّٰى يَبۡعَثَ فِىۡۤ اُمِّهَا رَسُوۡلًا يَّتۡلُوۡا عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِنَا‌ ۚ

او نه دی رب ستا (عادتًا) هلاک کوونکى (د اهل د دې) قريو تر هغه پورې چې وليږي په مور (لويه قريه ښار) د هغو (قريو ښار کې) يـو رسول چې لولي پر دوی آيتونه ځمونږ (لپاره د قطع د عذر).

تفسیر: یعنې الله تعالی تر هغه پورې دغه کلي او ښارونه تباه ـ خراب او فنا کړي نه دي؛ څو د هغو مراکزو او لويو مراکزو او لويو ځايونو کې کوم هوښيارونکی نبي نه وي ورلېږلی، د مرکز تخصيص ښايي د دې لامله وي، چې د هغه اثر تر ډېر لرې ځای پورې رسيږي، او د ښارونو هستېدونکي نسبتًا سليم او عاقل هم وي، د ځمکې د مخ د ګردو ودانيو مرکز او د صدارت مقام بيت الحرام وو، لکه چې د «شوری» سورت په اوله رکوع (۲۵) جزء کې لولو: ﴿لِتُنْذِرَ أُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا﴾ نو ځکه هلته د ګردو ځنې لوی او د آخر الزمان رسول مبعوث شو، صلى الله عليه وعلى آله وصحبه أجمعين.

وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرٰى إِلَّا وَأَهْلُهَا ظٰلِمُونَ ﴿۵۹﴾

او نه يو مونږ هلاک کوونکی خرابوونکي د کليو د ښارونو مګر په هغه وخت کې چې اهل د هغو ظالمان وي (په تکذيب د رسولانو).

تفسیر: یعنې هر کله چې سره له پوهولو او هوښيارولو هم خلقو له کفره او شرکه لاس وانخيست، او هم هغسې په خپل کفر ـ ظلم ـ طغيان او عصيان کې چالان او مترقّي وو، دلته د الله تعالی په دغه عذاب اخته او هلاک او سپېره شول.

وَمَآ أُوتِيتُم مِّن شَيْءٍ فَمَتٰعُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا ۚ وَمَا عِندَ اللّٰهِ خَيْرٌ وَأَبْقٰىٓ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۶۰﴾

او هر هغه چې درکړی شوي دي تاسې ته له کوم څيزه؛ پس هغه معاش نفع کار د دغه ژوندون لږ خسيس دی، او ښايست د هغه دی، او هر هغه چې په نزد د الله دی (اجر) خير غوره (دی) او باقي دی (له دغه فاني نه)، آيا پس تاسې عقل نه چلوئ (چې باقي بهتر دی په فاني باندې).

تفسیر: یعنې انسان ته ښايي چې له عقل او پوهې کار واخلي !، او دومره وپوهيږي چې دا ژوندون په دنيا کې تر کله پورې به وي؟ او د دنيوي د دغه باغ او بهار، عيش او عشرت، مزې اوچړچې به تر څه وخت پورې کوي؟ فرض يې کړئ چې په دنيا کې له سره پر ده عذاب هم رانشي، خو بيا هم د مرګي لاس تاسې ګرد له دغه ساز او سامان څخه جلا کوي، او بيا به د الله تعالی په مخ کې حاضر برئ، او تر يوې يوې ذرې پورې به هم د خپل اعمالو حساب ورکوئ، که مو أخروي عيش او عشرت په برخه شو؛ نو دغه دنيوي عيش عشرت د هغه په مقابل کې هيڅ او لاشي دی، داسې به کوم پوه او عقلمن سړی وي، چې يو مکدر او منغص ژوندون ته پر يو بې غشه او غله ژوندون او يو ناقص او فاني لذّت ته پر کامل او باقي لذائذو ترجيح ورکوي؟، بلکه نه يې ورکوي.

أَفَمَن وَعَدْنٰهُ وَعْدًا حَسَنًا فَهُوَ لَاقِيهِ كَمَن مَّتَّعْنٰهُ مَتٰعَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ثُمَّ هُوَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ مِنَ الْمُحْضَرِينَ ﴿۶۱﴾

آيا پس هغه څوک چې وعده کړېده مونږ له هغه سره وعده ښه (چې جنت دی) پس دی موندونکی دی د هغې وعدې (خامخا داسې دی) لکه هغه څوک چې معاش ورکړی وي مونږه ده ته معاش د (ژوندون لږ خسيس د) دنيا، بيا دی په ورځ د قيامت کې له حاضر کړيو شويو وي (اور ته؟ بلکه نه دي سره برابر دواړه !).

تفسیر: یعنې مؤمن او کافر دواړه د انجام په اعتبار کله سره يو برابر کېدی شي؟ د يوه لپاره د دائمي عيش کومه وعده چې شوې ده؛ هغه هرومرو پوره کېدونکې ده، او د بل لپاره د څو ورځو عيش او عشرت کولو څخه وروسته د بندی کړئ جلب ضروري رسېدونکی او دی په دائمي بنديخانه کې خامخا لوېدونکی دی (العياذ بالله).

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَآءِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ﴿٦٢﴾

او ياد كړه هغه ورځ چې غږ به وكړي دوى ته الله، پس وبه وايي (الله) چېرته دي شريكان ځما هغه (شريكان) چې وئ تاسې چې ګمان به مو كاوه (پرې چې دا شريكان ځما دي)؟.

تفسير: يعنې هغه د ألوهيت برخې لرونكي چېرې دي، هغوى دې وغوښت شي، چې اوس لږ څه د دوى تأييد او حمايت وكړي.

قَالَ الَّذِينَ حَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ رَبَّنَا هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَغْوَيْنَا أَغْوَيْنَاهُمْ كَمَا غَوَيْنَا ۖ تَبَرَّأْنَا إِلَيْكَ ۖ مَا كَانُوا إِيَّانَا يَعْبُدُونَ ﴿٦٣﴾

وبه وايي هغه كسان چې حقه ثابته شوې ده پر دوى خبره (د عذاب په دخول د اور سره): اى ربه ځمونږ! دا (ضعيفان تابعان) هغه كسان دي چې ګمراه كړي وو مونږ (دوى)، (ګمراه كړي مو وو دوى) لكه چې ګمراه شوي وو مونږ، بېزاره يو مونږ تاته (له دوى او له كفره د دوى)، نه وو دوى داسې چې خاص ځمونږ عبادت به يې كوو (بلكه عبادت د هوا د نفس خپل يې كوو).

تفسير: يعنې سؤال خو له مشركينو څخه وو، مګر ګمراه كوونكي شركاء به داسې وپوهيږي چې في الحقيقت مونږ ته هم تنبيه راكړى شوې ده، نو ځكه په ځواب وركولو كې سبقت كوي، چې اى الله! بېشكه چې مونږ دوى ګمراه كړي دي، مګر دا ګمراهي خو داسې ده لكه چې مونږ پخپله ګمراهان شوي يو، پس د دغو اغواوو په جرم مونږ اعتراف لرو، ليكن پر دغو مشركانو خو ځمونږ له لوري هيڅ كوم جبر او اكراه نه وه، او نه مو هغوى په زوره دغې ګمراهۍ ته اړولي دي، في الحقيقت دغه د دوى نفسي اغراض او شخصي هوا پرستي وه، چې ځمونږ په غولولو وغولېدل، او پر مونږ پسې رهي (روان) شول، نو په دغه اعتبار دوى ځمونږ د عبادت په ځاى د خپلو اهواوو او ظنونو په عبادت پسې لګيا وو، مونږ د دوى له عبادته څخه نن ورځ ستاسې په حضور كې د خپلې بېزارۍ او تنفّر اظهار كوو.

وَقِيلَ ادْعُوا شُرَكَاءَكُمْ فَدَعَوْهُمْ فَلَمْ يَسْتَجِيبُوا لَهُمْ

او وبه ويلى شي (كفّارو ته) چې وغواړئ تاسې شريكان د تاسې، پس را وبه غواړي دا (كفّار هغه بُتان)، پس هيڅ ځواب به ور نه كړي (دا بُتان) هغوى ته.

تفسير: يعنې دوى ته به ويل كيږي چې اوس خپل مددګاران خپلې مرستې ته رابولئ، مګر هغوى به د دوى سره څه مرسته او مدد وكړى شي؟ ځكه چې په خپل غم او مصيبت كې به اخته او مبتلا وي، كذا قال المفسرون.

وَرَأَوُا الْعَذَابَ ۚ لَوْ أَنَّهُمْ كَانُوا يَهْتَدُونَ ﴿٦٤﴾

او وبهويني دغه (تابعان او متبوعان) عذاب، كه چېرې بېشكه دوى وى چې سمه صافه لاره يې نيولې وى (نو اوس به نه معذب كېدل، يا كاشكې په كوم ډول مو لاره موندلې وى).

تفسير: يعنې د دغه وخت د عذاب د ليدلو څخه به داسې آرزو او تمنّا كوي، كاشكې زه په دنيا كې پر سمه صافه لاره تلى، تر څو په دغو مصائبو نه اخته او نه مبتلا كېدى.

وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ مَاذَآ أَجَبْتُمُ الْمُرْسَلِينَ ﴿٦٥﴾ فَعَمِيَتْ عَلَيْهِمُ الْأَنۢبَآءُ يَوْمَئِذٍ فَهُمْ لَا
يَتَسَآءَلُونَ ﴿٦٦﴾

او ياده كړه هغه ورځ چې غږ به وكړي دوى ته (الله)، پس وبه وايي چې څه ځواب وركړى وو تاسې رسولانو ته (په هغه وخت كې چې حق ته غوښتي شوي وئ؟). پس پټ به شي پر دوى خبرونه (چې دوى خلاص شي) په دغه ورځ كې، پس دوى به نه كوي پوښتنه يو تر بله.

تفسير: پخواني سوالات د توحيد په نسبت وو، دغه د رسالت په نسبت سوال دى، يعنې كه تاسې پخپل عقل او پوهې سره په حقه نه وى پوهيدلي؛ نو د انبياوو په پوهولو خو ښايي پوهېدى، دا راوښيئ چې تاسې له هغو سره څه سلوك او رويه كړې ده؟ په دغه وخت كې به هيڅوك هيڅ جواب نشي وركولى، او د خبرو ګردې لارې به بندې شي، (او پټ به شي په دوى جواب).

فَأَمَّا مَن تَابَ وَءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا فَعَسَىٰٓ أَن يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ ﴿٦٧﴾

پس هر هغه څوك چې توبه وباسي (له شركه) او ايمان راوړي (په الله او رسول د الله) او عمل وكړي د نېكيو؛ پس ښايي چې وي به دى له خلاصېدونكيو.

تفسير: يعنې د هغه ځاى برى او كاميابي صرف له ايمان او صالح عمل سره ده، كه اوس هم څوك له كفره او شركه توبه وباسي، او ايمان راوړي، او د نېكيو لاره ځان ته غوره كړي؛ حق تعالى د ده ټول پخواني ګناهونه معافوي، او فائز المرام يې ګرځوي.

وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ ۗ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ۚ

او رب ستا پيدا كوي هغه څه چې اراده وفرمايي (د پيدايښت يې)، او غوره كوي يې، نه دى دوى ته هيڅ اختيار (په هيڅ شي كې).

تفسير: يعنې د هر څيز پيدا كول د الله تعالى په مشيت او اختيار كې دي، او د كوم شي غوره كول يا د نورو له منځه د هغه منتخب كولو حق همده ته حاصل دى، او هر قسم چې الله تعالى اراده وفرمايي، او مرضي يې وي؛ هم هغسې احكام صادروي، هر يو سړى په هر يو منصب سره چې دى مناسب او لازم وبولي؛ هم هغه كار او منصب ورته عطاء كوي، په هر چا كې استعداد او لياقت وګوري؛ نو د هدايت پر سمه لاره يې برابروي، او د مقصود تر منزله پورې په رسېدلو سره برى او كاميابي ور په برخه كوي، حافظ ابن القيم د «زاد المعاد» په اوائلو كې دغه مضمون په ډېر بسط او تفصيل سره ليكلى دى، فليُراجع.

سُبْحَٰنَ اللَّهِ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿٦٨﴾

پاكي ده الله لره او لوى پورته دى له هغه څه چې دوى يې ورسره شريكوي.

تفسير: يعنې په تخليق او تشريع او مذكور اختيار كې بل هيڅوك له الله تعالى سره نه دي شريك، مشركانو چې پخپل تجويز او انتخاب كوم شركاء درولي او ټاكلي دي؛ هغه ګرد باطل او بې سنده دي.

وَرَبُّكَ يَعْلَمُ مَا تُكِنُّ صُدُورُهُمْ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٦٩﴾

او رب ستا ته معلوم دي هر هغه چې پټوي يې سينې (زړونه) د دوی، او هر هغه چې ښكاروي يې (ژبې د دوی).

وَهُوَ اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ لَهُ الْحَمْدُ فِي الْاُوْلٰى وَالْاٰخِرَةِ ۡ وَلَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۷۰﴾

او همدی الله دی نشته دی بل لايق د عبادت مګر همدی دی، خاص همده ته ټوله ثناء ده په دنيا او (په) آخرت (عُقبی) كې، او خاص همدغه (الله) ته دی حكم، او خاص همدغه (الله) ته به بيولی شئ تاسې (په قيامت كې).

تفسير: يعني هم هغسې چې الله تعالى په تخليق او اختيار او محيط علم كې متفرّد دی؛ په الوهيت كې هم واحد او يو دی، ماسوا له ده بل هيڅا ته بندګي او عبادت نه كيږي، ځكه چې د ده په منبع الكمالات ذات كې ګرد محاسن او محامد مجموع دي، د كلّي اقتدار مالك دی، او په آخره خاتمه كې د هر چا رُجوع د همده په لوري ده.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِضِيَآءٍ ؕ

ووايه (ای محمده دوی ته): آيا وينئ (يعني ښرنګه درښكاري) كه چېرې وګرځوي الله پر تاسې دغه شپه اوږده همېشه تر ورځې د قيامت پورې، نو څوك دي هغه (معبود) بې له الله چې راوړي تاسې ته رڼا (چې په كې طلب د معاش كوئ).

تفسير: يعني تاسې خبر راكړئ ! چې مثلاً الله تعالى پرې نه ږدي چې لمر طلوع وكړي، يا يې رڼا او تودوخه ترې لرې كړي، نو تاسې به د خپلو كارونو او چارو لپاره داسې تودوخه او رڼا له كومه راوړئ؟.

اَفَلَا تَسْمَعُوْنَ ﴿۷۱﴾

آيا پس نه اورئ تاسې (دغه خبره د زړه په غوږو سره؟).

تفسير: يعني دا خبره دومره روښانه او صافه ده، چې تش په يوه اورېدلو سره هم په فهم او پوهه راځي، نو آيا تاسو له سره نه اورئ؟.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ مَنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِلَيْلٍ تَسْكُنُوْنَ فِيْهِ ؕ اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۷۲﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته): آيا وينئ تاسې (يعني ښرنګه درښكاري) كه چېرې وګرځوي الله پر تاسې ورځ اوږده همېشه تر ورځې د قيامت پورې (چې هيڅ غروب الشمس ونشي)، نو څوك دی (معبود) بې له الله چې راوړي تاسې ته شپه چې آرام وكړئ تاسې په هغې كې؟ آيا پس نه وينئ تاسې (دا آثار د قُدرت).

تفسير: يعني تاسې خبر راكړئ ! كه الله تعالى پرې نه ږدي چې لمر غروب وكړي، او تل ترتله ستاسې پر سرونو همداسې ولاړ وي؛ نو هغه راحت او سكون او نور فوائد چې د شپې له راتلو څخه حاصليږي؛ د هغو حصول به په كوم يو طاقت سره ممكن كېدی شي؟ آيا دغسې يو ظاهر او باهر حقيقت هم تاسې نشئ ليدلئ؟.

تنبيه: ﴿اَفَلَا تُبْصِرُوْنَ﴾ له ﴿اِنْ جَعَلَ اللّٰهُ عَلَيْكُمُ النَّهَارَ سَرْمَدًا﴾ سره مناسب دی، ځكه چې په ستركو سره ليدل عادتًا پر رڼا موقوف دي، چې په ورځې كې په پوره ډول سره په عمل راځي، د شپې په تياره كې كله چې د ليدلو هيڅ يو

صورت نشته، بلکه اوربدل په کې امکان لري؛ نو ځکه ﴿إِن جَعَلَ اللَّهُ عَلَيْكُمُ الَّيْلَ سَرْمَدًا﴾ سره د ﴿أَفَلَا تَسْمَعُونَ﴾ فرمايل موزون وو، والله أعلم.

﴿وَمِن رَّحْمَتِهِ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ وَالنَّهَارَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ٧٣﴾

او (خاص) له رحمته مهرباني خپلې پيدا کړې ده (الله) تاسې ته شپه او ورځ، لپاره د دې چې آرام وکړئ تاسې په هغه (شپه) کې، او چې ولټوئ تاسې (په دغه ورځ کې) له فضله د دغه (الله)، او لپاره د دې چې شُکر وکړئ تاسې (د نعماوو د الله).

تفسير: يعنې د شپې او د ورځې اړول رااړول، څو د شپې په تيارو کې مو سکون او راحت په برخه شي، او د ورځې په رڼا کې خپلو کارو او چارو ته هم دوام ورکړی شئ، او د شپې او د ورځې پر مختلف الأنواعو انعاماتو د الله تعالى د انعاماتو شُکر اداء کړئ.

﴿وَيَوْمَ يُنَادِيهِمْ فَيَقُولُ أَيْنَ شُرَكَاءِيَ الَّذِينَ كُنتُمْ تَزْعُمُونَ ٧٤ وَنَزَعْنَا مِن كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا فَقُلْنَا هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ فَعَلِمُوا أَنَّ الْحَقَّ لِلَّهِ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ٧٥﴾

او (ياد کړه) هغه ورځ چې غږ به وکړي دوی ته (الله) پس وبه فرمايي چېرته دي شريکان ځما هغه چې وئ تاسې چې ګمان به مو کاوه (پرې د شريکانو ځما). او را وبه باسو له هر امّت (ملّت) څخه يو شاهد (پر اقوالو، افعالو، احوالو د دوی)، پس وبه وايو مونږ دوی ته: راوړئ تاسې بُرهان سند خپل (په اشراک)، پس هلته به پوه شي دوی چې حق په (الوهيت کې) خاص الله لره دی، او ورک به شي له دوی نه هغه چې وو دوی چې دروغ به يې جوړول (په دنيا کې چې الله شريک لري).

تفسير: له شهيد څخه احوال ښوونکي انبياء عليهم السلام يا د دوی نائبان يا نور ښه سړي مقصود دي (موضح القرآن)، دوی به دغه راښيي چې خلقو له سماوي شرائعو او له الهي احکامو سره څه رويه کړې ده؟، نو الله تعالى به ورته وايي چې هر کله مو نبي ونه منو نو يو برهان او دليل خو راوړئ چې تاسو په کوم دليل ما سره شريکان ګرځولي پس هلته به پوه شي دوی، چې حق خاص الله تعالى لره دی، او ورک به شي له دوی نه هغه چې وو دوی چې دروغ به يې جوړول، يعنې په هغه وخت کې به دغه په نظر راځي، چې رښتيا خبره د پاک الله ده، او معبوديت هم يواځې د همده حق دی، او بل هيڅوک د ده شريک نشي کېدی، هغه خبرې چې په دنيا کې انبياوو عليهم السلام ښوولې وې؛ هم هغه حقې او رښتيا وې، هغه عقائد او افکار چې مشرکانو له خپل لوري جوړ کړي وو؛ هغه ګرد په هغه ورځ کې بې اثره او ناقص او بېکاره ثابتېږي.

﴿إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِن قَوْمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ لَتَنُوءُ بِالْعُصْبَةِ أُولِي الْقُوَّةِ إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ لَا تَفْرَحْ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِينَ ٧٦﴾

بېشکه چې قارُون وو له قومه د موسى (يعنې د ده تربور وو)، پس سرکشي وکړه (قارون) پر دغو (بني اسرائيلو)، او ورکړی وو مونږ ده ته له خزانو دومره قدر چې بېشکه کليګانې د هغو به خامخا درنېدلې پر (داسې يوې) ډلې چې خاوندان د قوّت زور به وو، (ياد کړه) هغه وخت چې وويل دغه (قارون) ته قوم د ده (چې مسلمانان وو) په کبر او غرور سره مه خوشالېږه ! بېشکه چې الله محبّت نه کوي له خوشالېدونکو سره، (چې په مال د دنيا خوشالېږي).

تفسیر: وایي چې قارُون د موسی علیه السّلام د تره ځوی یا تربور او د فرعون د مخې سړی وو، څرنګه چې د ظالمو حکومتونو دستور وي چې د کوم قوم د وینې څښلو لپاره د هم هغه قوم ځیني افراد د خپل کار آله او د لاس همسا ګرځوي، فرعون هم په بني اسرائیلو کې هم دغه ملعون ځان ته غوره کړی وو، قارون په دغه موقع کې چې فرصت موندلی وو، پخپلو دواړو لاسو سره د دولت او دنیا په ټولولو کې لګیا شوی وو، او ډېر لوی دنیوي اقتدار یې ځان ته ګټلی وو.

موسی علیه السلام یو ځلې پر قارون حکم وکړ چې: «د خپل مال زکات اداء کړه !»، نو قارون له خلقو سره وویل: «تر اوسه پورې کوم احکام چې موسی پر مونږ جاري کول، د هغه په مقابل کې مو حوصله او تحمّل کاوه، مګر آیا تاسې اوس د موسی علیه السلام د دغې خبرې تحمّل هم کولی شئ، چې دی څمونږ د اموالو څخه زکاتونه هم غواړي؟»، څه خلق د قارون مؤیدان شول، او ویل یې چې: نه، څمونږ له لاسه دغه نه ده پوره، بالآخر ملعون قارون د موسی علیه السلام د بدنام کولو لپاره یوه ډېره ناپاکه او چټله پلمه (تدبیر) جوړه کړه، او یوې بدکارې ښځې ته یې څه بډې او پیسې ورکړې، او ویې لمسوله چې د خلقو په یوه لویه جرګه کې کله چې موسی علیه السلام د زناء د حدّ په اطراف بیانات ورکوي؛ ته هغه له خپله ځانه سره متهم کړه، لکه چې دغې پلیتې ښځې په هم هغه لویه مجمع کې هم داسې یوه چټي (بېکاره) خبره وکړله، کله چې حضرت موسی علیه السلام هغې ته شدید قسمونه ورکړل، او د الله تعالی له قهره او غضبه یې وویروله؛ نو هغه وویرېده، او په ښکاره ډول سره یې وویل چې: ما دغه د قارون په لمسولو سره ویلي دي، دلته د قارون د موسی علیه السلام په ښېرا سره له خپله کوره او خزانو په ځمکه خښ او ډوب کړل شو، د «مفاتح» تفسیر یې په کنجیو (کلیو) سره کړی دی، یعنې د اموالو دومره صندوقونه وروسره وو، چې د هغو د کلیګانو په پورته کولو څو زورور کسان ستړي کېدل، او دغه دومره مستبعد هم نه وو، لکه چې په ځینو تفاسیرو کې د هغه صورت هم ښوولی شوی دی، ﴿إِذْ قَالَ لَهُ قَوْمُهُ﴾ یعنې په دغه فاني او زائل دولت ولی نازېږې او پړی فخر او غرور کوې چې هغه د الله تعالی په نزد څه قدر قیمت نه لري او نه الله تعالی د مغرور بندګانو سره محبت کوي.

وَابْتَغِ فِيمَآ اٰتٰىكَ اللّٰهُ الدَّارَ الْاٰخِرَةَ

او وغواړه په هغه (دولت) چې درکړی دی تاته الله کور د آخرت.

تفسیر: یعنې د الله تعالی ورکړی مال د دې لپاره دی، چې انسان هغه د آخرت خپله پنګه وګرځوي، نه داسې چې د هغه د غفلت په نشو مست، مغرور او متکبّر شي، او د متکبرانو په شان حرکت او وضعیت اختیار کړي.

وَلَا تَنْسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا وَأَحْسِنْ كَمَآ أَحْسَنَ اللّٰهُ إِلَيْكَ

او مه هېروه برخه خپله له (ماله د) دنیا او احسان کوه (له بندګانو د الله سره په ورکړه د مال) لکه چې احسان کړی دی الله له تا سره (چې داسې ډېر دولت یې درکړی دی).

تفسیر: یعنې د خپلې برخې سره ترې خوره !او څښه !او آغونده !او د آخرت لپاره دې پنګه ترې واخله !، او په ناروا مواردو کې یې مه لګوه !او د خلق الله سره ښه سلوک کوه !.

وَلَا تَبْغِ الْفَسَادَ فِي الْأَرْضِ ۖ إِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴿۷۷﴾

او مه غواړه (ای قارونه !) فساد (په تکبّر، ظلم او بغي سره) په ځمکه کې، بېشکه چې الله محبّت نه کوي فساد کوونکو سره.

تفسير: يعنې له موسى عليه السلام سره ضد مه کوه ! د الله تعالى پر ځمکه د مطيعانو په شان ګرځه ! او خامخا په بلاد الله کې شورماشور او غلغله مه جوړوه ! ځکه چې په ملك کې فتنه او فساد اچول ښه کار نه دی.

قَالَ إِنَّمَآ أُوتِيتُهُۥ عَلَىٰ عِلْمٍ عِندِىٓ ۚ

وويل (قارون قوم خپل ته): بېشکه همدا خبره ده چې راکړی شوی دی ماته دغه مال په هغه علم سره چې ما څخه دی.

تفسير: يعنې هنرمن وم، او د ګټلو استعداد او سليقه مې درلوده، پخپل لياقت او قابليت يا د کوم خاص علمي مهارت لامله ماته دغه دولت حاصل شوی دی، الله تعالى هم ماته ځما د لياقت او اهليت په ملحوظ دغه مال، دولت او شته راکړي دي، او دغه ثروت په خوشې ناسته بې له محنته ماته په لاس نه دی راغلی چې اوس يې زه د موسى په حکم او مشوره خوشې ويريا د الله تعالى په نوم لګوم.

أَوَلَمْ يَعْلَمْ أَنَّ ٱللَّهَ قَدْ أَهْلَكَ مِن قَبْلِهِۦ مِنَ ٱلْقُرُونِ مَنْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُ قُوَّةً وَأَكْثَرُ جَمْعًا ۚ

آيا نه پوهېده (قارُون) چې بېشکه الله په تحقيق هلاك کړي دي پخوا له دغه (قارون څخه) له (اهل د) زمانو هر هغه څوك چې دی ډېر سخت وو له دې (قارون) څخه له جهته د قوّت، او ډېر وو له جهته د جمع کولو (د مال يا ملاتړه).

تفسير: يعنې د دولت ګټلو لياقت چا درکړ؟ افسوس دی چې تا د حقيقي منعم احسان هېر کړ، او د هغه په درکړي دولت او لياقت مغرور شوې، آيا ده دغه دولت له خپل نجات وسيله او ضامن ګڼلی وو؟ او دی په دغه نه وو خبر چې د ده څخه پخوا څومره ملل او اقوام له خپلو همداسې شرارتونو او سرکښيو له سببه هلاك او تباه شوي دي، چې د هغوی په لاسو کې لوی لوی سلطنتونه او ډېرې زياتې خزانې، لښکرې او نور زيات دنيوي وسائل او وسائط وو، آيا دغه ملعون د هغو د احوالو د اورېدلو څخه پند او عبرت نه دی اخيستی؟.

وَلَا يُسْـَٔلُ عَن ذُنُوبِهِمُ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٧٨﴾

او نه به شي پوښتېدلی له ګناهونو خپلو څخه کافران (ځکه چې الله ته معلوم دي).

تفسير: يعنې پوښتنې ته به ضرورت نه وي، پاتې الله تعالى ته د دوی ګناهونه يو په يو معلوم دي، او له پرښتو سره هم ليکلي پراته دي، هو ! که د توبيخ او تقريع په ډول کوم وخت کوم سوال له دوی نه وشي؛ نو هغه بېله خبره ده، يا خو دغه کنايه ده د ګناه له کثرته، يعنې د دوی ګناهونه به دومره ډېر او زيات وي، چې دغه ته به ضرورت نه وي پاتې چې د يوې يوې جزئيې پوښتنه له دوی څخه وکړه شي.

فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِۦ فِى زِينَتِهِۦ ۖ قَالَ ٱلَّذِينَ يُرِيدُونَ ٱلْحَيَوٰةَ ٱلدُّنْيَا يَٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِىَ قَٰرُونُ إِنَّهُۥ لَذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴿٧٩﴾

پس راووت (قارون) پر قوم خپل په زينت ښايست (او دج خپل)، وويل هغو کسانو چې غوښت يې دغه ژوندون (لږ خسيس د) دنيا: ای کاشکې چې وی مونږ ته هم (له ثروته) په شان د هغو (اموالو اتباعو) چې ورکړی شوي دي قارون ته، بېشکه چې دغه (قارون) خامخا خاوند دی د برخې لويې (له دنيا څخه).

تفسیر: یعنې قارون خپل فاخره لباس واغوست، او سره له ډېرو خدمو او حشمو، او په ډېر شان او شکوه ، او جل او بل ووت، چې د هغه د لیدلو څخه د دنیا د طالبانو سترګې رډې بلهې پاتې شوې، او ګرد ورته هک حیران ودرېدل، او له خپلو ځانونو سره به یې داسې ویل: «کاشکې چې مونږ هم د داسې دنیوي شان او شوکت خاوندان وی !، او همداسې ترقي او عروج مو حاصل کړی وی؛ چې نن د قارون په برخه شوی دی، بېشکه چې دی ډېر د اقبال او اجلال خاوند او ډېر خوش قسمته سړی دی».

وَقَالَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ وَيْلَكُمْ ثَوَابُ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّمَنْ اٰمَنَ وَعَمِلَ صَالِحًا ۚ وَلَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الصّٰبِرُوْنَ ﴿۸۰﴾

او وویل (دوی ته) هغو کسانو چې ورکړی شوی وو (هغوی ته) علم فهم چې: افسوس دی تاسې ته (ای طلابو د دنیا)، ثواب د الله خیر ډېر غوره دی هغه چا ته چې ایمان یې راوړی دی (په الله او رسول الله) او عمل یې کړی دی د نېکیو، او نه ورکول کیږي (یا نه ښوولی کیږي) دغه (خبره) مګر صبر کوونکیو ته (په طاعت او مصیبت او له معصیته).

تفسیر: یعنې پوهانو او ذي علم سړیو وویل چې: «ای کمبختانو ! په دغه فاني جل وبل کې څه ایښي دي چې د هغه هوس او ارمان کوئ؟ صالحانو مؤمنانو لپاره د الله تعالی په دربار کې کوم دولت او عزّت چې شته، او دوی ته وررسېدونکی دی؛ د هغه په مقابل کې دغه دنیوي شان او شوکت محض هیڅ او لاشي دي، او دومره یو نسبت هم سره نه لري، لکه چې د یوې ذرې نسبت له لمر سره کیږي»، داسې خبرې هغو خلکو ته ښوولی کیږی چې په دنیا کې د الله تعالی په طاعت ټینګ ولاړ وي، د ګناهونو نه ځان ساتي، او په مصیبتونو او کړاوونو صبر کوي ځکه چې هغوی د حقیقي ژوند په قدر قیمت پوهیږي.

فَخَسَفْنَا بِهٖ وَبِدَارِهِ الْاَرْضَ ۗ فَمَا كَانَ لَهٗ مِنْ فِئَةٍ يَّنْصُرُوْنَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۗ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُنْتَصِرِيْنَ ﴿۸۱﴾

پس ننه ایست مونږ دغه (قارون) او کور د ده په ځمکه کې، پس نه وو ده ته (په دغه وخت کې) هیڅ ډله (د دوستانو) چې مدد ګاري یې کړي وی له ده سره غیر له الله څخه (په دفع د عذاب کې)، او نه وو (قارون پخپله) له بدل اخیستونکیو څخه (چې ځان یې له عذابه خلاص کړی وی).

تفسیر: یعنې نه بل څوک له خپله طرفه د ده مدد ته ورسېد، او نه یې څوک د خپل مدد لپاره وغوښتی شو، نه یې خپل قوّت په کار ورغی، نه د بل چا.

وَاَصْبَحَ الَّذِيْنَ تَمَنَّوْا مَكَانَهٗ بِالْاَمْسِ يَقُوْلُوْنَ وَيْكَاَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ ۚ

او سبا کړ هغو کسانو چې آرزو به یې کوله د مرتبې د دغه (قارون) په پرون (ماښام) کې ویل به یې (یو بل ته): افسوس دی تاته پوه شه ! چې بېشکه الله پراخوي رزق روزي په هر هغه چا چې اراده وفرمایي (د پراخولو یې) له بندګانو خپلو، او تنګوي (الله دغه روزي په هر هغه چا چې اراده وفرمایي د تنګولو یې).

تفسیر: یعنې هغه کسان چې د قارون ترقي او ترفّع د لیدلو څخه پرون داسې ارزو او هیله (امید) کوله چې: «کاشکې مونږ ته هم داسې عُروج او ترقي حاصله شوي وی»؛ نن د قارون د دغه بد انجام د لیدلو څخه لاسونه پر غوږونو

ږدي، او توبې وباسي، او اوس په هوش راغلل، چې دغسې دولت په حقيقت کې د يوه ښکلي مار په شان دی، چې د هغه په منځ کې مهلك زهر وي، دغه دنيوي ترقي او تنزيل د کوم بنده د مقبوليت او مردوديت معيار نشي کېدی، بلکه دغه د الله تعالی مصلحت او حکمت دی، پر هر چا چې لازم او مناسب وګڼي؛ د رزق او د روزۍ ورونه (ابواب) ورپرانيځي، او هر چا ته چې مناسب وي؛ روزي ورتنګه او په اندازه کوي يې، د مال او دولت پراخوالی د ښې خاتمې او مقبوليت دليل نه دی، بلکه علی الأکثر د هغه نتيجه تباهي او بربادي ده، او د ابدي هلاکت او فلاکت په صورت څرګنديږي.

لَوْلَآ أَن مَّنَّ ٱللَّهُ عَلَيْنَا لَخَسَفَ بِنَا ۖ وَيْكَأَنَّهُۥ لَا يُفْلِحُ ٱلْكَٰفِرُونَ ﴿۸۲﴾

که چېرې نه وی دا چې احسان کړی دی الله پر مونږ؛ نو خامخا ډوب کړي به يې وو مونږ په ځمکه کې (د قارون په شان)، افسوس دې ته؛ نه پوهيږې نه ويني دا چې نه خلاصيږي کافران (له عذابه).

تفسير: يعنې دغه د الله تعالی مهرباني او احسان دی چې مونږ يې د قارون په شان ونه ګرځولو، که نه ځمونږ حال او احوال به هم داسې کېده، له خپل لوري که مونږ د ډېر حرص او طمعې له سببه داسې هيله او آرزو کړې وه: ﴿يَٰلَيْتَ لَنَا مِثْلَ مَآ أُوتِىَ قَٰرُونُ﴾ الله تعالی ځمونږ په مخ کې خير راپېښ کړ، چې ځمونږ دغه آرزو او هيله يې تر سره ونه رسوله، او نه يې پر دغه حرص او طمعې مونږ ته څه تنبيه او سزا راکړه، بلکه د قارون نتيجه او حشر يې مونږ ته راښکاره او مونږ يې په دغه وسيله سره ويښ او منتبه کړو، اوس مونږ ته دغه خبره ښه څرګنده شوه، چې محض د مال او زر په ترقی سره حقيقي فلاح او بری هيچا ته نشي حاصلېدی، او دغه چې ناشکره منکران له سره د الله د عذابه نجات نشي موندلی.

تِلْكَ ٱلدَّارُ ٱلْءَاخِرَةُ نَجْعَلُهَا لِلَّذِينَ لَا يُرِيدُونَ عُلُوًّا فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فَسَادًا ۚ وَٱلْعَٰقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ﴿۸۳﴾

دغه کور د آخرت (چې جنّت دی) ورکوو مونږ دا لپاره د هغو کسانو چې نه لري اراده د لويي (او تکبّر) په ځمکه کې، او نه فساد ظلم کوي (پر خلقو)، او عاقبت ښه خاتمه لپاره د پرهېزګارانو ده.

تفسير: يعنې د قارون د دولت په نسبت ناپوهانو داسې ويل چې: قارون خو ډېر خوش قسمته او بختور سړی دی، حال دا چې دغه خوش قسمتي او بختورتوب نه دی، بلکه د آخرت ګټه په لاس کول لويه خوش قسمتي ده، او دغه ګټه د هغو کسانو لپاره ده چې د الله تعالی په ملك کې شرارت او فساد غورځول نه غواړي، او په دغه فکر کې له سره نه دي، چې خپل ځان له ګردو څخه لوی او لوړ (اوچت) وګڼي، بلکه د تواضع او انکسار او پرهېزګارۍ لار ځان ته اختياروي، د دوی کوښښ د دې په ځای چې خپل ذات لوړ او لوی ښکاره کړي؛ تل په دغه کار کې مصروف او معطوف دي چې خپل دين لوړ کړي، او کلمة الله په اعلاء کې ووينې.

په هر حال د مؤمنانو اصلي مقصد آخرت دی، د دنيا هغه برخه چې د دغه مقصد ذريعه وګرځي؛ هم هغه ښه او مبارکه ده که نه هيڅ.

مَن جَآءَ بِٱلْحَسَنَةِ فَلَهُۥ خَيْرٌ مِّنْهَا ۖ وَمَن جَآءَ بِٱلسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى ٱلَّذِينَ عَمِلُوا۟ ٱلسَّيِّـَٔاتِ إِلَّا مَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿۸۴﴾

او هر چا چې وکړه کومه نیکي؛ پس شته ده ته (ښه جزاء) خیر غوره له جهته د دغې (حسنی) او
هر چا چې وکړه کومه بدي؛ پس نشي ورکولی جزاء هغو کسانو ته چې کړې يې دی (عمل د)
د بديو مګر (جزاء د هغه شي) چې وو دوی چې کاوه به يې (په دنيا کې).

تفسير: يعني کومه نيکي چې دلته وکړي؛ له هغه څخه ښه او بهتره نيکي به هلته ورسره وکړه شي، د يوې نېکۍ څرنګه چې د هغه اقتضاء وي؛ اقلاً لس چنده د هغه ثواب ورکاوه کيږي، شاه صاحب ليکي: «پر نېکۍ باندې د نېکۍ وعده يې ورکړه، چې هغه على اليقين رسېدونکې ده، او پر بدي يې د بدۍ وعده ونه فرمايله، چې ضرور به وررسيږي، څکه چې ممکن دي چې هغه ورمعاف شي، هو ! دومره يې وفرمايل چې: د هغه فعل له سزا څخه به ډېره سزا ورته ونه رسيږي».

إِنَّ الَّذِي فَرَضَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لَرَادُّكَ إِلَىٰ مَعَادٍ

بېشکه هغه (الله) چې فرض (نازل) کړي يې دي پر تا (احکام د) قرآن؛ خامخا بېرته بيوونکی دی
د تا هغه ځای د وعدې (مکې) ته.

تفسير: ځينو مفسّرينو له «معاد» څخه موت مراد کړی دی، او ځينو آخرت، او ځينو جنت، او ځينو د شام ځمکه چې هلته دوی يوځلې د معراج په شپه تشريف وړی وو، حافظ عماد الدين ابن کثير (رحمة الله عليه) په دغو اقوالو کې ډېر عميق او لطيف تطبيق کړی دی، يعني له معاده دلته مکه معظّمه مراده ده (کما في البُخاري) مګر د مکې معظمې فتح د قرب الأجل علامه ده، لکه چې ابن عباس او عمر رضي الله تعالى عنهما د ﴿إِذَا جَآءَ نَصۡرُ ٱللَّهِ وَٱلۡفَتۡحُ﴾ په تفسير کې وفرمايل: د وړاندني «أجل» څخه وروسته د «حشر»، د حشر څخه وروسته د «آخرت»، او د آخرت وروستنی منزل جنّت دی.

مطلب يې داسې شو چې الله تعالى به تا ړومبی په يوه شانداره طريقه سره بېرته مکې معظّمې ته راولي، وروسته له هغه څو ورځې اجل مو واقع کيږي، بيا به د شام په ځمکه کې حشر کېږئ، لکه چې له أحاديثو څخه ثابت شوي دي، بيا په آخرت کې به هم په ډېر شان او شوکت سره تشريف راوړئ، او په آخر کې په جنّت کې ډېر اعلى مقام ته استول کېږئ.

قُل رَّبِّيٓ أَعۡلَمُ مَن جَآءَ بِٱلۡهُدَىٰ وَمَنۡ هُوَ فِي ضَلَٰلٖ مُّبِينٖ ﴿٨٥﴾

ووايه (اى محمده ! دوی ته) رب ځما ته ښه معلوم دي هغه څوک چې راتګ يې کړي په
هدايت سره او هغه څوک چې هغه په ګمراهۍ ښکاره کې دی.

تفسير: يعني الله تعالى ته ځما هدايت او د مکذبينو او معاندينو ګمراهي ښه معلومه ده، يقيناً دی به له هر يوه سره سم د دوی له احواله سره معامله کوي، او دغه له سره نشي کېدی چې ځما دغه کوښښ ضايع شي، يا ګمراهان رسوا، سپک او ګمراه نه کړي.

وَمَا كُنتَ تَرۡجُوٓاْ أَن يُلۡقَىٰٓ إِلَيۡكَ ٱلۡكِتَٰبُ إِلَّا رَحۡمَةٗ مِّن رَّبِّكَۖ فَلَا تَكُونَنَّ ظَهِيرٗا لِّلۡكَٰفِرِينَ ﴿٨٦﴾

او نه وې ته چې توقّع اميد دې درلود (لرلو) د دې چې راوبه لېږلی شي تاته کتاب (قرآن)، ليکن
(راولېږلی شو محض) په رحمت مهرباني له (جانبه) د رب ستا، پس مه کېږه ته خامخا مددګار
لپاره د کافرانو (په دين د دوی کې).

تفسير: ته له پخوا ځني د نبوّت په انتظار کې نه وې، دا محض د الله تعالى رحمت او موهبت دی، چې ته يې په رسالت سره سرفراز کړې، نو هم هغه الله تعالى به په دنيا او آخرت کې تاته برى او کاميابي درکوي، لهذا ای محمده ! د ده پر معاونت او امداد تل ترتله اعتماد او اطمينان ولره !.

وَلَا يَصُدُّنَّكَ عَنْ اٰيٰتِ اللّٰهِ بَعْدَ اِذْ اُنْزِلَتْ اِلَيْكَ وَادْعُ اِلٰى رَبِّكَ وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۸۷﴾

او (خبردار چې) وا دې نه ړوي (کفّار) خامخا تا (په مکر او فريب) له آيتونو د الله پس له هغه چې نازل کړل شول تاته، او وبوله خلق (توحيد او عبادت) د رب خپل ته، او مه کېږه ته خامخا له مشرکانو څخه (په اعانت د دوی کې).

تفسير: يعنې ته دې د دين په کار کې د خپل قوم خاطر او رعايت مه کوه ! او مه دې خپل ځان په هغوې کې شمېره ! اګر که دوی ستا له قرابت دارانو څخه هم وي، هو ! دوی ګرد د خپل رب په لوري وبوله ! او د الله تعالى د احکامو په تعميل کې ټينګ اوسه !.

وَلَا تَدْعُ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ

او مه بوله ته له الله سره معبود بل (ځکه چې) نشته هيڅ لايق د بللو بل هيڅوک مګر همدی دی (يواځې، ځکه چې) هر ځيز فاني کېدونکی دی مګر مخ د ده (چې تل باقي دی).

تفسير: دغه خطاب اګر که پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دی، مګر بالوسيله په دغه سره نورو ته پند او نصيحت ورکول کيږي، د پاس آيتونو په نسبت ځيني مفسّرينو همداسې ليکلي دي، يعنې هر شی له خپله ذاته معدوم دی، او تقريبًا ټول شيان فناء کېدونکي دي، اعم له دې چې په هر وخت کې وي، مګر خو د الله تعالى مخ چې نه له سره معدوم وو، او نه هرګز فناء کېدونکی دی، رښتيا ده: (ألا كلُّ شيءٍ ما خلا الله باطل)، و قال الله تعالى: ﴿كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿۲۶﴾ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلٰلِ وَالْاِكْرَامِ ﴿۲۷﴾﴾. (چې مراد تري د الله تعالى ټول ذات دي).

لَهُ الْحُكْمُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿۸۸﴾

همده ته دی حکم (نافذه قضاء)، او همده ته به بېرته بوتلی شئ تاسې (لپاره د جزاء).

تفسير: يعنې د ګردو حضور د ده په مخ کې د حساب او کتاب لپاره يو حتمي او ضروري شی دی، چې هلته يواځې د همده حکم چليږي، او صورتًا، ظاهراً، او مجازاً هم د بل هيڅا حکم نه چليږي، او نه به قوّت او اقتدار ورپاتې وي، ای الله ! جار دې شم ! په همدغه وخت کې پر دغه ګناهګار بنده دې رحم وفرمايه ! او له خپله غضبه يې وساته !.

تمّت سورة القصص ولله الحمدُ والمنّة.



# سُوۡرَةُ الۡعَنۡكَبُوۡتِ

«د (العنکبوت) سورت مکّي دی، پرته له (۱ ـ ۱۱) آیتونو پورې چې مدني دي، (۶۹) آیته او (۷) رکوع لري، په تلاوت کې (۲۹) او په نزول کې (۸۵) سورت دی، وروسته د «الروم» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمّٓ ۞ اَحَسِبَ النَّاسُ اَنۡ يُّتۡرَكُوۡۤا اَنۡ يَّقُوۡلُوۡۤا اٰمَنَّا وَهُمۡ لَا يُفۡتَنُوۡنَ ۞

آیا گمان کوي دا خلق د دې چې پرې به ښودی شي دوی (په) همدې قدر چې ووایي دوی چې: ایمان راوړی دی مونږ؛ حال دا چې دوی به ونه ازمویل شي؟.

**تفسیر:** یعني په ژبه سره د ایمان دعوی کول دومره سهل او آسانه نه دي، هر څوک چې د ایمان دعوی کوي، امتحان او ابتلاء ته دې یې هم تیار شي !، همدغه د امتحان محک دی چې پرې سره او ناسره سولولی کېږي او معلومېږي، په حدیث کې راغلي دي چې: له ګردو څخه سخت امتحان د انبیاوو دی، وروسته له هغه د صالحینو بیا درجه په درجه د هغو خلقو دی، چې له هغو سره مشابهت لري، او د انسان امتحان د ده د دین او ایمان له حیثیته اخیست کېږي، په هر اندازه چې انسان پخپل دین او ایمان کې مضبوط او سخت وي؛ په هم هغه اندازه له هغه څخه سخت امتحان اخیست کېږي.

وَلَقَدۡ فَتَنَّا الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ

او خامخا په تحقیق ازمویلي وو مونږ هغه کسان چې له دوی نه ړومبي وو.

**تفسیر:** یعني د ړومبنیو انبیاوو د متبعینو ډېر لوی او سخت امتحان اخیست شوی دی، په صحیح بخاري شریف کې دي چې: صحابه وو رضي الله عنهم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې عرض وکړ، چې یا رسول الله صلی الله علیه وسلم ! څمونږ لپاره د الله تعالی له درباره دعاء او مدد وغواړئ ! دا هغه زمانه وه چې د مکې معظّمې مشرکینو پر مسلمانانو باندې انتهایي ظلم او ستم کوو، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل، چې پخوا له تاسو به یې یو (ژوندی) انسان په ځمکه کې ولاړ خښوو، او بیا د هغه پر سر به یې اره کشوله، او د ده سره به له منځه دوه ټوټې ټوټې کېده، د ځینو نورو مؤمنینو پر وجود به یې د اوسپنې تک سره سیخونه وهل او لګول، چې د هغو په اثر به د دوی پوستکي او غوښتې وریتې کېدې او سوځېدې، تناکې به یې وهلې، او لاندې به لوېدې، خو سره د دغو سختیو باوجود له خپل دین څخه به یې دوی نشو ګرځولی.

فَلَيَعۡلَمَنَّ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ صَدَقُوۡا وَلَيَعۡلَمَنَّ الۡكٰذِبِيۡنَ ۞

پس خامخا معلوم به کړي الله (په علم ظاهري سره ـ په کوم علم چې ثواب او عقاب مرتب دی ـ هم) هغه کسان چې رښتیني دي (په دعوی د ایمان کې)، او خامخا معلوم به کړي الله (هغه) دروغجنان (په علم ظاهري سره هم).

تفسیر: یعني الله تعالی په علانیه ظاهروي او هر یو به پوهیږي چې د ایمان په دعوی کې کوم یو رښتین راوځي؟ او کوم یو دروغجن ځرګندیږي، او سم له هغه سره به هر یوه ته سزا ور کوي.

أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ أَن يَسْبِقُونَا ۚ سَاءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٤﴾

آیا ګمان کوي هغه کسان چې عمل کوي دوی د بدیو (لکه شرک او معاصي) د دې چې ړومبی به شي دوی پر مونږ (چې مونږ به له دوی نه انتقام ونشو اخیستی)، بد دی هغه حکم چې کوي یې دوی (چې نفي د انتقام دی).

تفسیر: یعني د مؤمنینو امتحانات دي کافران داسې ونه ګڼي چې مونږ په خوندونو او مزو سره ظلمونه کوو او دهغو له سختیو څخه ساتلي یو، دوی له مونږه خپل ځانونه چیری ساتلی شي هغه سختی سزاوی چې دوي ته ورکولی کیږي د هغه په مقابل کې د امتحان سختۍ هیڅ نه دي دوي ددی عارضی مهلت په نسبت چې کوم نظر لري چې مونږ به تل مأمون یو په حقیقت کې ډیره بده خرابه فیصله یې کړې ده.

مَن كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ اللَّهِ فَإِنَّ أَجَلَ اللَّهِ لَآتٍ ۚ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٥﴾

هر څوک چې وي امید لري دی د ملاقات د الله (په جنت کې)؛ پس بېشکه اجل نېټه د (ملاقات د) الله خامخا راتلونکې ده، (نو ښایي چې ورته تیار شي)، او همدی ښه اورېدونکی دی (د ټولو اقوالو) ښه عالم دی (پر ټولو احوالو).

تفسیر: یعني هر هغه سړی چې په دغه توقّع سختي ګالي، چې یوه ورځ به زه هرومرو د الله تعالی په مخ کې حاضرېدونکی یم، چې هلته تر یوې ذرې پورې هم حساب او کتاب کیږي، که زه دلته په دغه امتحان کې ناکام شوم؛ نو د دغه ځای له سختیو څخه په زیاتو سختیو کې اخته کېدونکی یم، او که ترې بریالی او کامیاب ووتلم؛ نو دغه ګرد تکالیف به ځما له مخې څخه لرې کیږي، او د الله تعالی رضاء او لقاء به مې په برخه کیږي، نو داسې سړی دې په یاد ولري چې د الله تعالی وعده هرومرو راتلونکې ده.

وَمَن جَاهَدَ فَإِنَّمَا يُجَاهِدُ لِنَفْسِهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنِ الْعَالَمِينَ ﴿٦﴾

او هر څوک چې جهاد کوي (له کفّارو یا له نفس خپل سره)؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې جهاد کوي لپاره (د نفعې) د نفس خپل، بېشکه چې الله خامخا غني بې پروا دی له ټولو عالمیانو څخه.

تفسیر: یعني الله تعالی ته د چا له طاعت او عبادت څخه هیڅ نفع او له معصیته هیڅ قسم نقصان نه رسیږي، هغه غني ذات له هغې شیانو څخه په کلي ډول سره بې پروا او بې نیازه دی، هو ! بنده په هره اندازه چې د الله تعالی په طاعت کې محنت او زیار پر ځان اخلي؛ د هغه ثمره او نتیجه ورته په دنیا او آخرت کې رسیږي، پس مجاهده کوونکی دې هیڅکله داسې خیال ونه کړي، کله چې مونږ د الله په لاره کې دومره زحمت کوو؛ نو (معاذ الله) پر الله تعالی خپل څه منّت او احسان باروو، بلکه بالعکس دا د هغه الله تعالی مرحمت او احسان دی، چې تاسې ته یې ستاسې د ګټې او فائدې لپاره د طاعت او ریاضت توفیق درکړی دی.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَحْسَنَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿٧﴾

او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه) خامخا وبه رژوو مونږ هرومرو له دوی نه ګناهونه د دوی، او خامخا جزاء به ورکړو مونږ هرمرو دوی ته ښه جزاء د هغه (عمل) چې وو دوی چې کاوه به یې (په اسلام کې).

**تفسیر:** یعنې سره له دې نه چې الله تعالی د ګرد عالم څخه غني، بې پروا او بې نیاز دی، خو بیا هم په خپل رحمت او شفقت سره ستاسې محنت او زحمت نه ضایع کوي، او په ځای یې رسوي.

وَوَصَّيْنَا الْإِنسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا ۖ وَإِن جَاهَدَاكَ لِتُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا ۚ

او (مؤکد) امر کړی دی مونږ پر انسان له مور پلار خپل سره یې د نېکۍ (هر کله په هر څه کې)، او که کوښښ کوي (دوی دواړه) له تاسره چې شریک ونیسې ته له ما سره هغه څیز چې نشته تاته په (الوهیت) د هغه کې هیڅ علم؛ پس اطاعت مه کوه ته د دوی (دواړو).

**تفسیر:** ﴿فَلَا تُطِعْهُمَا ۚ﴾ «اطاعت مه کوه ته د دې دواړو په اشراک بالله کې».

په دنیا کې له موره او پلاره د بل هیڅا حق زیات نه دی، خو د الله تعالی حق له دوی نه هم ډېر دی، د والدینو لامله نه ښایي چې د الله تعالی دین پرېږدي (موضح)، په حدیث کې راغلي دي، چې د سعد بن أبي وقّاص رضي الله عنه والده چې مشرکه وه، کله چې د خپل ځوی د اسلام خبر یې واورېد؛ نو له خپله ځانه سره یې عهد وکړ، څو سعد (معاذ الله) له اسلامه مرتدّ نشي؛ نو زه به له سره خوړل او څښل نه کوم، او تر چت لاندې به آرام ونه کړم، لکه چې هغې له طعام خوړلو او له اوبو څښلو خپله خوله وتړله، او بیخي خواره زهیره شوه، خلقو به په زور او زیادت د دې خوله پرانستله، او ډوډۍ او اوبه یې ورکولې، نو په دغه مناسبت دغه آیت نازل شو، ګواکې دغه یې راوښودل چې د والدینو په داسې شان پر خلاف الحق باندې مجبورول هم هغه یو شان ابتلاء او امتحان دی، ښایي چې د خالص مؤمن د ثبات پښه ترې ونه ښوییږي.

إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ⑧

خاص ماته دي بیا راتله د تاسې (ټولو)، پس خبر به کړم زه تاسې پر هغو (اعمالو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې).

**تفسیر:** یعنې ټول به په هغه عدالت کې حاضر برئ !، په دغه وخت کې به ګردو ته دا وروښوول کیږي، چې په اولاده او والدینو کې کوم یو متجاوز او له خپله حده تېری کوونکی وو؟ او کوم یو پر حق او صداقت قائم وو.

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَنُدْخِلَنَّهُمْ فِي الصَّالِحِينَ ⑨

او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) خامخا داخل به کړو مونږ هرومرو دوی په (جماعت) د صالحانو کې (چې انبیاء او اولیاء دي).

**تفسیر:** یعنې هر څوک چې سره له داسې زبردستو موانعو او عوائقو هم پر ایمان او د نېکۍ پر لاره قائم وي؛ حق تعالی به د هغه حشر پخپلو خاصو بندګانو کې کوي، ابن کثیر (رحمه الله) لیکي: «که اولاد په ناحقه خبره کې د خپلو والدینو خبره ونه منله، او والدین هم هغسې په ناحقه ټینګ ولاړ وي؛ نو د اولاد حشر به له صالحینو سره کیږي، او د ده د والدینو په زمره کې به نه کیږي، اګر که د طبیعي او نسبي تعلّقاتو په بناء دی د ګردو ځنې دوی ته ډېر نژدې وي، په

«المرء مع من أحبّ» (چې سړی به د هغه چا سره چې د هغه سره مینه لری) کې دیني محبّت مراد دی، طبیعت محبت نه دی مراد».

وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ فَإِذَا أُوذِيَ فِي اللَّهِ جَعَلَ فِتْنَةَ النَّاسِ كَعَذَابِ اللَّهِ

او ځینې له خلقو څخه هغه څوک دي چې وایي (تش په خوله) ایمان راوړی دی مونږ په الله باندې، پس کله چې سختي ورسوله شي ده ته په (لاره) د الله کې؛ نو وګرځوي فتنه سختي خپګان د خلقو (او شمیرې یې) په شان د عذاب د الله.

تفسیر: دغه د هغو خلق ذکر دی چې پخپله ژبه ځان ته «مؤمن» وایي، مګر د دوی په زړونو کې له سره ایمان راسخ نه وو، دوی ته هر چېرې چې د الله تعالی په لاره کې کوم ربړ یا تکلیف وررسېده، یا د دین له سببه یې څوک تکلیفوو؛ نو دغه امتحان او آزموینه دوی د الله تعالی د عذاب په منزله ګڼله، څرنګه چې انسان د الله تعالی له عذابه ویریږي، او خپل ځان ترې ساتي، او وروسته د هغه له نزوله له خپلې هغې پخوانی دعوی څخه لاس واخلي، او ناچاره اعتراف او اقرار کوي چې زه په غلطی کې وم؛ همدغسې حال د هغو ضعفاوو القلوبو دی، هر چېرې چې د دین په معامله کې کومه سختي وررورسیږي؛ نو ژر تر ژره ویریږي، او د ایمان له دعوی څخه لاس اخلي، او په ژبه یا په عمل سره ګواکې داسې اقرار کوي چې مونږ پخپلې دغې دعوی کې په غلطی کې وو، یا دغسې دعوی مو له سره نه وه کړې.

وَلَئِن جَاءَ نَصْرٌ مِّن رَّبِّكَ لَيَقُولُنَّ إِنَّا كُنَّا مَعَكُمْ

او قسم دی که چېرې راشي مددګاري (د مؤمنانو) له (طرفه) د رب ستا (چې فتح او غنیمت یوسي)؛ نو خامخا وبه وایي دغه (منافقان) هرومرو بېشکه مونږ (هم) یو له تاسې سره (په ایمان کې) (نو په غنیمت کې مو شریک کړئ).

تفسیر: یعنې که د مسلمانانو کوم عروج او موفقیت وګوري؛ نو له خپله ځانه د هغه په نسبت خبرې جوړوي، چې مونږ خو له تاسې سره وو، او اوس هم ستاسې اسلامي ورونه یو، خصوصًا که مسلمانان فاتح شي، او فرض یې کړئ که دغه خلق چې د کفّارو سره یې معاونت کاوه، د مسلمانانو په لاس کې بندیان شي؛ نو بیا د دوی د نفاق او تملّق لپاره هیڅ حد او اندازه نشته.

أَوَلَيْسَ اللَّهُ بِأَعْلَمَ بِمَا فِي صُدُورِ الْعَالَمِينَ ۝١٠

(وفرمایل الله) آیا نه دی الله ښه عالم په هغه (اخلاص او نفاق) چې په سینو زړونو د عالمیانو کې (پټ) دی (بلکه په هر شي باندې ښه عالم دی).

تفسیر: یعنې لکه چې ځینې له دغو خلقو له مسلمانانو سره دي، الله ته دغه ګرد (ټول) معلوم دي، آیا تش د ژبې په دعوی سره دوی له الله تعالی څخه د خپلو زړونو احوال پټولی شي؟.

وَلَيَعْلَمَنَّ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَيَعْلَمَنَّ الْمُنَافِقِينَ ۝١١

او خامخا معلوم به کړي الله (په هغه علم چې ثواب او عقاب وربانديې مرتّب دی) هرومرو هغه څوک چې ایمان یې راوړی دی، او خامخا معلوم به کړي هرومرو (الله) منافقان (نو ور به کړي هرې یوې فرقې ته جزا موافقه).

**تفسير:** يعني الله تعالى ته لا له پخوا څخه هر شی پوره معلوم دی، ليکن اوس ستاسي اعمال او افعال نورو ته هم ورښيي او ظاهروي يې چې آيا د عمل په ميدان او په ښکاره ډول کوم يو له تاسي خپل ځان صادق مؤمن ثابتوي؟ او کوم يو دروغجن ـ دغاباز او منافق دی؟، نو هغو ته د هغوی د عملونو موافق جزا ورکول کيږي.

**تنبيه:** په دې قسم مواضعو کې د ﴿وَلَيَعۡلَمَنَّ ٱللَّهُ﴾ معنى په (ليرينّ الله) سره له ابن عبّاس رضي الله تعالى عنه څخه منقول دي، كما في تفسير ابن كثير (رحمه الله).

وَقَالَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّبِعُواْ سَبِيلَنَا وَلۡنَحۡمِلۡ خَطَٰيَٰكُمۡ

او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی: متابعت وکړئ تاسې د لارې څمونږ (په دنيا کې) او ښايي بار به کړو (پر ځانونو) ګناهونه ستاسې.

**تفسير:** يعني کفارو به مسلمانانو ته ويل: «راځئ اسلام خوشې کړئ ! او په خپلو هم هغو پخوانيو ورورګلويو او خپلويو کې ننوځئ ! او څمونږ پر لاره تګ وکړئ، څو له ګردو تکاليفو او ايذاوو څخه نجات ومومئ !، او بې سببه په دغو مصائبو او تکاليفو کې پاتې نشئ، او که تاسې داسې اقدام ګناه ګڼئ، او له مؤاخذې څخه يې ويرېږئ؛ نو د الله تعالى په دربار کې څمونږ نوم واخلئ، چې دوی مونږ ته داسې مشوره راکړې وه، او که داسې کومه پېښه دروړاندې شي؛ نو ګرد مسئوليت او ذمه واري به مونږ په خپل سر اخلو».

وَمَا هُم بِحَٰمِلِينَ مِنۡ خَطَٰيَٰهُم مِّن شَيۡءٍۖ إِنَّهُمۡ لَكَٰذِبُونَ ۝١٢ وَلَيَحۡمِلُنَّ أَثۡقَالَهُمۡ وَأَثۡقَالٗا مَّعَ أَثۡقَالِهِمۡۖ

حال دا چې نه دي دوی (پخپل ځان) اخيستونکي له ګناهونو د دوی د هيڅ شي، بېشکه دوی خامخا دروغجنان دي (په دغه وعده کې). او خامخا بار به کړي هرومرو (دغه کفّار) بارونه درانه د ګناهونو خپلو او نور درانه بارونه هم سره له بارونو درنو د ګناهونو خپلو.

**تفسير:** يعني دوی دروغجنان دي، او ستاسې بار د يوې ذرې په اندازه هم دوی نشي سپکولی، هو ! خپل بار درنوي، يو خو د دوی د ذاتي ګناهونو بار وو، اوس د نورو د اغواء کولو او د ګمراه کولو بار پر هغه لا زيات شو، شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «که څوک وغواړي چې رفاقت وکړي، او د بل چا د ګناه بار پر خپله اوږه واخلي؛ امکان نه لري، مګر که يو بل ګمراه کړي؛ نو د دغه ګمراه شوي سړي د ګناه بار هم د دغه ګمراه او هم د هغه ګمراه کوونکي په غاړه لوېږي» (موضح) لکه چې په حديث کې راغلي دي: «هر څوک چې په دنيا کې (ناحقه) وينه تويه کړي؛ د ده د ګناه برخه د آدم عليه السلام ړومبني ځوی «قابيل» ته هم رسيږي، چې هغه اول ځلي دغه خرابه لاره ايستلې ده».

وَلَيُسۡـَٔلُنَّ يَوۡمَ ٱلۡقِيَٰمَةِ عَمَّا كَانُواْ يَفۡتَرُونَ ۝١٣

او خامخا وبه پوښتېدلی شي دوی هرومرو په ورځ د قيامت کې له هغو (دروغو) چې وو دوی چې له ځانه به يې جوړول (په الله، په رسول الله).

**تفسير:** يعني دوی د دروغو خبرې جوړوي، چې مونږ به ستاسې بار پر خپلو اوږو آخلو، دغه بالذات يوه مستقله ګناه ده، پر دغه همدوی مأخوذېږي.

وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦ فَلَبِثَ فِيهِمۡ أَلۡفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمۡسِينَ عَامٗا

او خامخا په تحقيق لېږلی وو مونږ نوح قوم د ده ته، پس مدّت يې تېر کړ په دوی کې زر کاله (لپاره د تبليغ او دعوت حق ته) مګر پنځوس کاله (کم له زرو نه).

تفسیر: له ابن عبّاس رضي الله تعالی عنه څخه منقول دي چې نوح علیه السلام په څلویښت کلنۍ کې مبعوث شو، نهه نیم سوه کاله په دعوت ـ تبلیغ ـ سعي او اصلاح کې مصروف او لګیا وو، بیا طوفان (ځپان) راغی، له طوفانه وروسته (۶۰) کاله نور هم ژوندی پاتې وو، چې په دغه حساب سره د دوی ټول عمر (۱۰۵۰) کاله شو.

فَأَخَذَهُمُ الطُّوفَانُ وَهُمْ ظَٰلِمُونَ ﴿۱۴﴾

(نو تکذیب یې وکړ) پس ونیول دوی طوفان (ډېرو اوبو نو غرق شول) حال دا چې دوی ظالمان وو (په سبب د کفر خپل).

تفسیر: یعنې کله چې دوی له ګناهونو او شرارتونو څخه لاس وانخیست؛ نو طوفان پرې نازل شو، چې په هغه وخت کې پرته له څو تنو مخصوصو نفوسو نور ګرد سره ډوب او هلاک شول.

فَأَنجَيْنَٰهُ وَأَصْحَٰبَ ٱلسَّفِينَةِ

پس نجات ورکړ مونږ ده ته (له عذابه د طوفان) او خاوندانو د بېړۍ (ته چې له ده سره وو).

تفسیر: هغه انسانان یا حیوانان چې پر دغې بېړۍ کې سواره وو، هغوی مو د نوح علیه السلام په ملګرتوب محفوظ او مأمون وساتل، د هود علیه السلام په سورت کې د دغه قصه په تفصیل سره تېره شوې ده.

وَجَعَلْنَٰهَآ ءَايَةً لِّلْعَٰلَمِينَ ﴿۱۵﴾

او وګرځوله مونږ دغه (بېړۍ یا قصه لویه) نښه (د قدرت او عبرت) عالمیانو ته.

تفسیر: وایي چې د نوح علیه السلام بېړۍ تر ډېرو مودو پورې د (جودي) پر غره ولاړه وه، څو د ګردو لیدونکو لپاره عبرت وي، نن ورځنۍ بېړۍ او جهازونه هم د هم هغې بېړۍ یوه نښه ده، چې د هغو د لیدلو څخه هم د نوح علیه السلام د سفینې یاد تازه کیږي، او د الله تعالی د قدرت یوه نمونه په نظر راځي، یا ښایي چې ترې داسې مراد وي چې: مونږ دغه قصه د همېشه لپاره د عبرت نښه ګرځولې ده.

وَإِبْرَٰهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ وَٱتَّقُوهُ ۖ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۱۶﴾ إِنَّمَا
تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ أَوْثَٰنًا وَتَخْلُقُونَ إِفْكًا ۚ

او (یاده کړه قصه د) ابراهیم کله چې ویې ویل قوم خپل ته چې عبادت کوئ تاسې الله ته، او وویرېږئ له (عذابه د) ده، دغه (عبادت او ویره) غوره ده تاسې ته (له کفره) که چېرې یئ تاسې چې پوهېږئ (په خیر او شر خپل). بېشکه همدا خبره ده چې عبادت کوئ تاسې غیر له الله د بُتانو او جوړوئ دروغ (له خپله ځانه چې معبودان یې بولئ).

تفسیر: یعنې له خپله ځانه په دروغو سره عقیدې جوړوئ، او د دروغو خیالاتو او اوهامو متابعت کوئ، لکه چې تاسې په خپلو لاسونو بُتان له تیږو (ګټو) ځنې توږئ او دروئ یې، او بیا هغه تاسې په دروغو سره خپل معبودان ګرځوئ.

إِنَّ ٱلَّذِينَ تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ لَكُمْ رِزْقًا فَٱبْتَغُوا۟ عِندَ ٱللَّهِ ٱلرِّزْقَ
وَٱعْبُدُوهُ وَٱشْكُرُوا۟ لَهُۥٓ ۖ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۱۷﴾

بېشکه هغه کسان چې عبادت يې کوئ تاسې بې له الله؛ نه دي مالکان دوی تاسې ته د رزق، پس طلب کړئ تاسې په نزد د الله رزق (چې قادر دی په رسولو د روزی)، او عبادت کوئ د هم هغه (الله يواځې)، او شکر وباسئ هم هغه (الله) ته (په نعمتونو د ده)، همدغه الله ته به بېرته بيولي کېږئ تاسې.

**تفسير:** يعنې تاسو چې د چا عبادت کوئ هيڅ قسم روزی تاسو ته نه شي درکولی، دا کار يواځې الله تعالی کوی نو د هغه عبادت وکړئ، او د هغه په نعمتونو شکر وباسئ هم هغه الله تعالی ته ستاسی ورتګ او رجوع ده.

وَإِن تُكَذِّبُوا فَقَدْ كَذَّبَ أُمَمٌ مِّن قَبْلِكُمْ ۖ وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿١٨﴾

او که نسبت د دروغو وکړ تاسې (ای کفّارو رسُول ته)؛ نو په تحقيق نسبت د دروغو کړی وو (انبياوو خپلو ته) ډېرو قومونو پخوا له تاسې، او نشته پر رسول باندې مګر رسونه (د پيغام) ښکاره.

**تفسير:** يعنې (ای کفارو !) ستاسې له دغه دروغجن ګڼلو ځنې ماته هيڅ ضرر او نقصان نه رسيږي، زه په صافو الفاظو سره تبليغ، پند او نصيحت کوم، او خپله وظيفه او فريضه مې په دغه مورد کې په ښه ډول سره اداء کړېده، او د ښو او بدو لارې او کندې مې ګردې تاسې ته درښوولې دي، که سره له هغه يې تاسې نه منئ؛ البته تاسې به هم داسې نقصانونه ومومئ، لکه چې پخوا له تاسې «عاديان» او «ثموديان» او نور په کې اخته او مبتلا شوي وو.

أَوَلَمْ يَرَوْا كَيْفَ يُبْدِئُ اللَّهُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۚ إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿١٩﴾

آيا نه ويني (دغه منکران له بعثه) چې څرنګه اول پيدا کوي الله دا خلق، بيا به يې دويم ځلي هم خلق کړي، بېشکه دغه (اعاده د مخلوق اول او دويم ځلي) پر الله آسانه ده.

**تفسير:** يعنې پخپلو ځانونو کې غور او دقّت وکړئ ! ړومبی تاسې بيخي نه وئ ! الله تعالی تاسې له عدم څخه وجود ته راوستئ، همداسې تاسې به وروسته له مرګه هم بيا ژوندي راپاځوي.

شاه صاحب ليکي: «ړومبی خو مو ليدلی دی، وروستی هم پرې قياس کړئ» يعنې د الله تعالی په نزد خو هيڅ شی سخت او مشکل نه دی، مګر خبره ستاسې په پوهيدلو او باور کولو کې ده، هغه ذات چې يو شی يې بې له نمونې څخه اول ځلي پيدا کړی دی؛ دويم ځلي يې هم پيدا کولی شي، د نمونې د قائمېدلو څخه وروسته د يوه شي جوړول ښايي چې لا سهل او آسان وي.

قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانظُرُوا كَيْفَ بَدَأَ الْخَلْقَ ۚ ثُمَّ اللَّهُ يُنشِئُ النَّشْأَةَ الْآخِرَةَ ۚ
إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٠﴾ يُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَيَرْحَمُ مَن يَشَاءُ ۖ وَإِلَيْهِ تُقْلَبُونَ ﴿٢١﴾
وَمَا أَنتُم بِمُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ ۖ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿٢٢﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې وګرځئ تاسې په ځمکه کې پس وګورئ چې څرنګه يې شروع کړې دی پيدايښت (له نشتوالي څخه)، بيا به الله پيدا کړي پيدا کول وروستني هم (په آخرت کې په مثل د ړومبني پيدايښت په دنيا کې ځکه چې) بېشکه الله پر هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځينې يې مبدا او اعاده ده). عذاب ورکوي هر هغه چاته چې اراده وفرمايي (د تعذيب يې) او رحم کوي پر هغه چا چې اراده وفرمايي (د رحمت يې) او خاص هم دغه (الله) ته تاسې

ېرته بیولی کېږئ. او نه یئ تاسې (ای خلقو !) عاجزوونکي (د الله) په ځمکه کې او نه په اسمان کې (له عذاب خپله)، او نشته تاسې ته غیر له الله هیڅ دوست (چې وساتي تاسې)، او نه هیڅ مددګار (چې ستاسې مرسته وکړي په دفع د عذاب کې).

تفسیر: یعنې خپل ذات پرېږدئ ! د نورو اشیاوو په پیدایښت کې هم غور او فکر وچلوئ ! او د الله تعالی په ځمکه او ملکونو کې وګرځئ ! او سترګې وغړوئ ! چې الله تعالی څرنګه مخلوقات پیدا کړي دي؟ پر هم دغو مخلوقاتو او موجوداتو هم هغه خپل بل ژوندون هم اټکل او قیاس کړئ ! او پرې ښه وپوهېږئ ! چې د هغه قدرت خو اوس نه دی محدود شوی، نو همدغه الله تعالی تاسې دویم ځلي هم پیدا کوي، او بیا به سم له خپله حکمته او مصلحته سره سزا درکوي، او پر هر چا چې اراده وفرمایي؛ پخپل فضل ـ کرم او رحمت سره به خپل مهرباني مبذوله فرمایي، او د هر چا سزا ورکولو ته چې الله تعالی اراده وفرمایي؛ هغه نه په دې سره له هغې سزا خلاصېدی شي، چې دی د ځمکې په سوریو کې ننوځي، یا اسمان ته والوځي، هیڅ یوه هسکه او ټیټه د الله تعالی مجرم ته د پناه ځای نشي ورکولی، او نه هیڅ زور، قوت او طاقت هغه مجرم ته څه امداد او معاونت رسولی شي، او نه ورسره څه مرسته او نه یې حمایت کولی شي.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَلِقَآئِهٖٓ اُولٰٓئِكَ يَئِسُوْا مِنْ رَّحْمَتِيْ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۲۳﴾
فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا اقْتُلُوْهُ اَوْ حَرِّقُوْهُ

اوهغه کسان چې کافران شوي دي په آیتونو د الله او په ملاقات د دغه (الله)؛ دغه کسان نااميده دي له رحمت ځما، او دغه کسان مقرر دی دوی ته عذاب ډېر دردناک. پس نه وو ځواب د قوم د دغه (ابراهیم) مګر دا وو؛ چې وویل دوی: ووژنئ تاسې دغه (ابراهیم) یا وسوځوئ ده لره.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې د الله تعالی له خبره څخه انکار کوي، او د الله تعالی سره د مخامخ کېدلو امید نه لري؛ نو هغوی به څرنګه د الله تعالی د رحمت څخه امید کولی شي، ځکه چې دوی په بعث بعد الموت قائل نه دي، لهذا دوی به په آخرت کې هم محروم او مأیوس پاتې کیږی، او دغه د ﴿مَنْ كَانَ يَرْجُوْا لِقَآءَ اللّٰهِ فَاِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ لَاٰتٍ﴾ عکس شو.

یعنې د ابراهیم علیه السلام د تمامو معقولو خبرو او دلائلو او براهینو د اورېدلو څخه کله چې د ده قوم له ځواب څخه عاجز شو؛ نو د قوّت د استعمال لپاره یې لاس وغځول، پخپلو منځونو کې یې سره جرګه او مشوره وکړه، چې ښایي دی ووژلی شي، او یو ځلي دغه شورماشور آرام کړي، یا په اور کې وسوځولی شي، څو یې د ربړ او تکلیف له احساسولو څخه له خپله دغو خبرو واوړي، که ده له خپلو دغو خبرو څخه توبه وویسته؛ نو نه به یې سوځوو، که نه په اور کې به یې وغورځوو چې د ایرو یوه ډېری ترې جوړه شي.

فَاَنْجٰىهُ اللّٰهُ مِنَ النَّارِ

پس نجات ورکړ دغه (ابراهیم ته) الله له (ضرره د) اوره.

تفسیر: یعنې د دوی د مشورو او جرګو په اثر ابراهیم علیه السلام په اور کې وغورځول شو، مګر الله تعالی اور پرې ګلزار کړ، لکه چې د «الأنبیاء» په سورت کې یې قصه مفصّلا تېره شوه.

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۲۴﴾

بېشکه په دغه (نجات د ابراهیم له اوره) کې خامخا ډېر دلائل (د قدرت) دي لپاره د هغه قوم چې ایمان یې راوړی دی.

تفسير: يعنې دغې واقعې دا راښكاره او جوته كړه چې الله تعالى خپلو صادقو بندګانو ته څرنګه نجات وركوي؟ او د حق مخالفان څرنګك خائب، خاسر او نااميده كوي؟ دا هم راڅرګنده شوه چې د هر شي تأثير د الله جل جلاله له حكمه دى، كله چې د الله جلّ جلاله حكم نه وي؛ نو د اور په شان يو شى هم يو څيز نشي سوځولى.

وَقَالَ إِنَّمَا اتَّخَذْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ أَوْثَانًا مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا

او ويل (ابراهيم خپل قوم ته) بېشكه همدا خبره ده چې نيولي دي تاسې غير له الله بُتان (په الوهيت سره) لپاره د دوستۍ په منځ ستاسې كې په دغه ژوندون لږ خسيس كې.

تفسير: يعنې كله چې ابراهيم عليه السلام له اوره څخه صحيح او سلامت ووت؛ نو بيا يې خپل قوم ته دغسې نصيحت وكړ چې: «كوم يو عقلمن سړى بت پرستي ته ښه او جايزه ويلى شي؟ بُت پرستان هم په خپلو زړونو كې په دې باندې ډېر ښه پوهيږي چې دغه حركت نهايت مهمل حركت دى، مګر د قومي ښېرازۍ د جمع ساتلو لپاره دوى داسې يو مذهب ځان ته ټاكلى (مقرر كړى) دى چې د هغه پر نامه ټول قوم سره متّحد او متفق وي، او يو له بل سره دوستان شي، لكه چې نن ورځ مونږ د اوروپا د عيسايي اقوامو احوال ګورو، يا دا مطلب چې د بت پرستۍ شيوع او رواج په دغه نه دى بناء شوى چې هغه كوم معقول څيز دى، بلكه د ړندو تقليد، د قومي مروت او لحاظ او د ذات البيني تعلّقاتو تأثيرات د هغه لوى سبب دى، يا يې دا غرض دى چې د بُت پرستۍ اصلي اساس د ذات البيني محبت دوستي ده، د يوه قوم هغه څه نېكك سړي چې د خلقو په نزد به محبوب وو، څه وخت چې انتقال يې وكړ، خلقو به د ډېرې مينې د دوى تصاوير جوړول، او د يادګار په ډول به يې ساتل، بيا به يې متدرّجا د دغو تصويرونو په تعظيم شروع كوله، همدغه تعظيم به ورو ورو پسې زياتېده، او د عبادت شكل به يې ځان ته اخيست، دغه ګرد احتمالات په دغه آيت كې د مفسّرينو له طرفه بيان كړى شوي دي، او ممكن دي له ﴿مَّوَدَّةَ بَيْنِكُمْ﴾ څخه د بت پرستانو هغه محبت مراد وي، چې دوى يې له خپلو بتانو سره لري، لكه چې په بل ځاى كې يې ﴿أَندَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللَّهِ﴾ فرمايلي دي، والله أعلم.

ثُمَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُ بَعْضُكُم بِبَعْضٍ وَيَلْعَنُ بَعْضُكُم بَعْضًا

بيا په ورځ د قيامت كې بېزاره (منكر) به شي ځيني ستاسې (چې متبوعان دي) له ځينو نورو څخه (چې تابعان دي)، او لعنت به وايي ځينې د تاسې (چې تابعان دي) پر ځينو نورو (چې متبوعان دي).

تفسير: يعنې دغه ګردې اوسنۍ دوستۍ او محبت د څو ورځو له مخې دى، د قيامت په ورځ كې به يو د بل سره دښمنان شي ! او ځينې به پر ځينو نورو لعنت وايي.

وَمَأْوَاكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٢٥﴾

او ځاى د هستوګنې ستاسې اور دى، او نه به وي تاسې ته (په قيامت كې) هيڅوكك له مددګارانو.

تفسير: چې له عذاب نه مو خلاص كړي اى نمروديانو ! او د دوزخ له اوره تاسې ته نجات دركړي، لكه چې څما رب ماته ستاسې له دغه اوره نجات راكړ.

فَاٰمَنَ لَهٗ لُوْطٌ ۘ وَقَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ اِلٰى رَبِّيْ ؕ اِنَّهٗ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۶﴾

پس ایمان راوړ دغه (ابراهیم) ته لوط، او وویل (ابراهیم) چې بېشکه زه هجرت کوونکی یم (له قوم خپله) رب څما، ته بېشکه چې دی هم دی ښه غالب قوي دی (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: لوط علیه السلام د ابراهیم علیه السلام وراره وو، د ابراهیم علیه السلام له قوم څخه هیڅا دی ونه مانه، یواځې لوط علیه السلام بلا توقّف د دوی تصدیق وکړ، د دوی دواړو وطن په «عراق» کې د «بابل» ښار وو، دوی د الله تعالی په توکّل له خپله وطنه ووتل، الله تعالی دوی د شام ملک ته ورسول، او هلته یې د هستوګنې وسائل ورمهیأ کړل.

تنبیه: په ﴿وَقَالَ اِنِّيْ مُهَاجِرٌ﴾ الآیة ـ کې دواړه احتمال شته چې قائل یې ابراهیم وي یا لوط علیهما السلام.

وَوَهَبْنَا لَهٗۤ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَجَعَلْنَا فِيْ ذُرِّيَّتِهِ النُّبُوَّةَ وَالْكِتٰبَ وَاٰتَيْنٰهُ اَجْرَهٗ فِي الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۲۷﴾

او وبانبه مونږ دغه (ابراهیم) ته (څوی) اسحاق او (لمسی) یعقوب، او ګرځولې وو مونږ په اولاده د دغه (ابراهیم) کې نبوّت او کتاب (لکه تورات، انجیل، زبور او قرآن)، او ورکړی وو مونږ دغه (ابراهیم) ته اجر د ده په دنیا کې، او بېشکه دی په آخرت کې خامخا له (معتبرو) صالحانو څخه دی.

تفسیر: اسحاق علیه السلام څوی او یعقوب علیه السلام لمسی یې ورعنایت کړ، چې د دوی اولادې ته بني اسرائیل وایي، او د ابراهیم علیه السلام نه وروسته ماسوا د ده د اولادې څخه بل هیچا ته اسماني کتاب او نبوّت نه ورکاوه کیږي، لکه هومره انبیاء چې مبعوث شوي دي د همدغه ابراهیم علیه السلام له ذریّاتو څخه دي، څکه دوی ته «أبو الأنبیاء» هم ویلی کیږي، او الله تعالی په دنیا کې ده ته مال، اولاد، عزّت او د تل لپاره ښه نوم ورکړ، او د شام ملک یې د همېشه لپاره ده ته او د ده اولادې ته وروبانبه «كذا في الموضح»، او په آخرت کې یې د صالحینو په اعلی درجه کې چې د اولو العزمو انبیاوو جماعت دی؛ شامل کړه.

وَلُوْطًا اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖۤ اِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الْفَاحِشَةَ ؗ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ اَحَدٍ مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۸﴾

او یاد کړه (ای محمده ! قصه د) لوط کله چې ویې ویل قوم خپل ته چې: بېشکه تاسې خامخا راځئ ناکاره کار (د لواطت) ته چې نه دي ړومبی شوي پر تاسې (په دغه قبیح کار کې) هیڅوک له (تېرو) عالمیانو (چې انس او جن دی).

تفسیر: یعني دغه شنیع فعل هیچا پخوا له تاسې نه دی کړی، همدا د دغې خبرې دلیل دی چې انساني فطرت له هغه څخه منفور دی، د داسې خلاف الفطرت او خلاف الشریعت کار اساس تاسې ایښی دی.

اَئِنَّكُمْ لَتَاْتُوْنَ الرِّجَالَ وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ ۙ

آیا تاسې خامخا راځئ سړیو ته (د لواطت لپاره)، او قطع کوئ (شکوئ) لاره (او د خلقو مال اخلئ).

تفسير: له لاري وهلو څخه مراد ممکن دي چې داړه ماري وي، چې دغه کار به هم په دوی کې رواج درلود (لرلو)، يا په دغه بدکارۍ سره به يې د مسافرانو لارې وهلې، چې هغوی د خپل عفّت او عصمت له وېرې د هغې لارې په لورې نه راتلل، يا به د ﴿وَتَقْطَعُوْنَ السَّبِيْلَ﴾ مطلب داسې وي، چې تاسې فطري او معتاده لاره پرې اېښې، او د توالد او تناسل لاره مو منقطع کړې ده.

وَتَأْتُوْنَ فِيْ نَادِيْكُمُ الْمُنْكَرَ

او راځئ تاسې په مجلسونو خپلو کې منکرو ناکارو کارونو ته.

تفسير: ښايي چې دغه بدکاري به يې په علانيه او ډانګ پيلې (ښکاره) د نورو خلقو په مخ کې کوله، او له سره به له خپلو دغو بدو اعمالو څخه نه شرمېدل، يا برسېره په هغه نور څه تمسخر او استهزاء او لاس اچول او د بې شرمۍ خبرې يې هم کولې.

فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوا ائْتِنَا بِعَذَابِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ﴿۲۹﴾

پس نه وو ځواب د قوم د دغه (لوط ده ته بل شی) مګر دا چې ويل به (دغو لواطت کارانو) چې راوړه مونږ ته عذاب د الله که چېرې يې ته (ای لوطه !) له صادقينو رښتيا ويونکيو (چې ځمونږ کارونه بد دي).

تفسير: يعني که ته په رښتيا سره نبي يې، او په واقع سره رښتيا خبره وايې چې دغه کار خراب او مستوجب د عذاب دی؛ نو دغه ځنډ (تأخير) او ډيل د څه لپاره دی؟ ژر هغه عذاب مونږ ته راوغواړه، د «الأعراف» سورت په (۱۰) رکوع (۸۲) آيت کې يې داسې فرمايلي دي: ﴿وَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهٖٓ اِلَّآ اَنْ قَالُوْٓا اَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ قَرْيَتِكُمْ ۚ اِنَّهُمْ اُنَاسٌ يَّتَطَهَّرُوْنَ﴾.

يعني د لوط عليه السلام د قوم جواب همدغه وو، چې د لوط کورنۍ له خپل کلي څخه وشړئ ! چې دوی غواړي خپل ځانونه پاک وساتي، ښايي د قوم ځينو افرادو به داسې ويلي وي، او ځينو به هغسې ويلي وي، يا به يې په يوه وخت کې داسې ويلي وي، او په بل وخت کې به يې هسې ويلي وي.

قَالَ رَبِّ انْصُرْنِيْ عَلَى الْقَوْمِ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿۳۰﴾

وويل (لوط) ای ربه ځما ! مدد وکړه له ما سره (په لېږلو د عذاب) پر دغه قوم مفسدانو (په پيدا کولو د ناکاره خصلت په عالم کې).

تفسير: دغه يې وروسته له هغه چې له هغوی څخه نااميده او مأيوس شو؛ وفرمايل، ښايي لوط عليه السلام به په دې پوهېدلي وي چې د دوی راتلونکې نسل به هم د عدل او اصلاح په لاره سمېدونکې نه وي، او هغوی به هم د همدغو خپلو پلرونو په لاره روان وي، لکه چې نوح عليه السلام فرمايلي وو: ﴿اِنَّكَ اِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوْا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوْٓا اِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا﴾ (د «نوح» سورت (۲) رکوع (۲۷) آيت (۲۹) جزء)، كذا قال النيشاپوري في تفسيره.

وَلَمَّا جَآءَتْ رُسُلُنَآ اِبْرٰهِيْمَ بِالْبُشْرٰى ۙ قَالُوْٓا اِنَّا مُهْلِكُوْٓا اَهْلِ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ ۚ اِنَّ اَهْلَهَا كَانُوْا ظٰلِمِيْنَ ﴿۳۱﴾

او کله چې راغلل رسولان (لېږلي) ځمونږ ابراهيم ته په زيري (د ځوی او لمسي د ده)؛ نو وويل (دغو ملائکو): بېشکه مونږ هلاک کوونکي يو د اهل د دغه کلي (او ښار د لوط)، بېشکه چې اهل د دغو ځايونو وو دوی ظالمان (په سبب د کفر او منکراتو).

تفسیر: د لوط علیه السلام د دعاء په اثر پرښتو ته حکم وشو چې دغه ګرد کلي سره وران او تباه کړئ! دغه پرښتې ړومبی د ابراهیم علیه السلام کره راغللې، او په زوړوالي کې يې ورته د ځوی او لمسي بشارت ورکړ، او هغه يې مطلع کړ چې مونږ د دغو کليو (سدوم) ورانولو ته هم راغلي يو، او دغه دی هلته ورځو، ځکه چې د دغو کليو هستېدونکي په هيڅ ډول سره له خپلو شنيعو حرکاتو څخه بېرته نه آوړي، د دغو واقعاتو تفصيل د اعراف ـ هود ـ او حجر په سورتونو کې پخوا تېر شوی دی.

قَالَ إِنَّ فِيهَا لُوطًا ۚ قَالُوا نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَن فِيهَا ۖ لَنُنَجِّيَنَّهُ وَأَهْلَهُ إِلَّا امْرَأَتَهُ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ ﴿٣٢﴾

وویل (ابراهیم ملائکو ته) چې: بېشکه په هغه ښار کې لوط (هم) دی، وویل دغو ملائکو: مونږ ښه پوه يو په هر هغه چا چې په دغه ښار کې دي، خامخا به مونږ نجات ورکړو هرومرو (خامخا) هم ده ته او هم کورنی د ده ته، مګر ښځه د ده، چې ده هغه له پاتې کېدونکيو (په عذاب کې).

تفسیر: يعني آيا سره د لوط علیه السلام د موجوديت هغه کلی ورانوئ؟ يا هغوی به له هغه ځايه راوباسئ؟ او بيا د تعذيب په عملياتو لاس پورې کوئ؟ غالبًا ابراهیم علیه السلام ته به د شفقت له سببه دغه خيال پيدا شوی وي، که د لوط علیه السلام تر سترګو لاندې دغه آفت او عذاب نازل شي؛ نو د تعجّب ځای نه دی چې د عذاب د دغه هولناکو مناظرو د ليدلو ځنې څه خوف او وحشت او وېره ور پيدا نشي، ځکه چې پرښتې په خپل کلام کې څه استثناء نه وه کړې، چې د هغه لامله د دوی په ذهن کې به هم دغه شک راغلی وی، چې د لوط علیه السلام په موجوديت کې به دغه تخريبي عمليات شروع کيږي، والله أعلم.

پرښتو دوی ته اطمينان ورکړ، چې مونږ ټول په دې باندې خبردار يو چې څوک څوک هلته اوسيږي؟ او کوم کوم يې د الله تعالى مجرمان دي؟ يواځې لوط علیه السلام په هغوی کې پاک او صاف دی، نو ځکه نه لوط علیه السلام ته او نه د ده نورې کورنۍ ته څه رېړ او تکليف ور متوجه کيږي، بلکه ټول سره روغ رمټ، صحيح، سالم نجات مومي، او د عذاب له منطقې څخه لرې کيږي، يواځې د لوط علیه السلام ښځه هم هغلته پاتې کيږي، ځکه چې هغه په معذّبينو کې شامله او عذاب پر هغې هم نازلېدونکی دی.

وَلَمَّا أَن جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا

او کله چې راغلل رسولان ځمونږ لوط ته؛ نو خپه شو (لوط) په (سبب د) دوی، او تنګ شو په دوی له جهته د زړه (چې منکران به يې راڅخه بوځي).

تفسیر: دغه پرښتې د ډېرو حسينو او جميلو او ښکلو هلکانو په شکل او د امردانو په شکل هلته ورسېدې، لوط علیه السلام ړومبی دوی ونه پېژندلې؛ نو ځکه د دوی د ليدلو څخه ډېر خپه او غمجن او لړمون خوړين شو، چې اوس به زه د دغو مېلمنو عزت او احترام د خپل قوم له لاسه څرنګه وساتلی شم، که دوی پخپل کور کې ونه ساتم؛ نو دغه وضعيت د اخلاق، مروت او د مېلمه پالنې له اصولو څخه منافات لري، او که يې ساتم؛ نو د دوی پت، عزت او ناموس به د دغو بدکارانو څخه څرنګه وساتلی شم.

وَقَالُوا لَا تَخَفْ وَلَا تَحْزَنْ ۖ إِنَّا مُنَجُّوكَ وَأَهْلَكَ إِلَّا امْرَأَتَكَ كَانَتْ مِنَ الْغَابِرِينَ ﴿٣٣﴾
إِنَّا مُنزِلُونَ عَلَىٰ أَهْلِ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ رِجْزًا مِّنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ﴿٣٤﴾

او وويل دغو (ملائكو لوط ته) مه ويرېږه ! او مه خپه كېږه ! بېشكه مونږ نجات دركوونكي يو تا ته او اهل ستا ته (اى لوطه ! له عذابه) مګر ښځه ستا ده هغه له پاتې كېدونكيو (په دغه عذاب كې). بېشكه مونږ نازلوونكي يو پر اهل د دې قريې (ښار د سدوم) باندې عذاب له اسمانه (چې د ګټو ورول دي) په سبب د دې چې وو دوى چې فسق او بدكاري به يې كوله.

تفسير: يعني د خپل قوم له شرارته څخه له سره مه ويرېږئ، ځكه دوى څمونږ په نسبت هيڅ نشي كولى، او څمونږ د ساتنې لامله تاسې هرګز مه غمجن كېږئ، ځكه چې مونږ انسانان نه بلكه پرښتې يو، چې ستا او ستا د ملګريو دنجات لپاره او د دغو مفسدانو اهلاك او افناء ته راغلي يو، دغه قصه پخوا له دې په څو ځايونو كې تېره شوې ده.

وَلَقَدْ تَّرَكْنَا مِنْهَآ اٰيَةًۢ بَيِّنَةً لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ۝٣٥

او خامخا په تحقيق پرېښوده مونږ له هغې (قريې ښار) يوه ښه ښكاره لپاره د هغه قوم چې عقل لري (او عبرت پرې اخلي).

تفسير: يعني د دوى د منقلبو او الټه شويو كليو آثار او نښې مكيّان د شام او مكّې پر لاره له لرېويني.

وَاِلٰى مَدْيَنَ اَخَاهُمْ شُعَيْبًا ۙ فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَارْجُوا الْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ۝٣٦

او (لېږلى مو وو اهل د) مدين ته ورور د دوى شُعيب، پس وويل (دغه شُعيب): اى قومه څما ! عبادت كوئ (يواځې) د الله، او اميد لرئ د ورځې وروستنۍ (او وويرېږئ له عذابه يې) يعني د آخرت له طرفه مه غافلېږئ، او د واحد الله تعالى بې له شريكه عبادت كوئ، او مه ګرځئ تاسې په ځمكه (د مدين) كې په دغه حال كې چې فساد كوونكي يئ !.

تفسير: د فساد او خرابۍ اچولو څخه مراد په معاملاتو او راكړه او وركړه كې چل، فرېب او دغابازي ده، چې سود سوايي او غير مشروعه ګټې خوړل د دوى عادت وو، او امكان لري چې غلا او د لارو شكونه به يې هم كوله، وقيل غير ذلك.

فَكَذَّبُوْهُ فَاَخَذَتْهُمُ الرَّجْفَةُ فَاَصْبَحُوْا فِىْ دَارِهِمْ جٰثِمِيْنَ ۝٣٧ وَعَادًا وَّثَمُوْدَا۟ وَقَدْ تَّبَيَّنَ لَكُمْ مِّنْ مَّسٰكِنِهِمْ ۟

پس دروغجن وباله دوى دغه (شُعيب) پس ونيول دوى لره سختې زلزلې (يا چغې د جبريل) پس سبا كړ دوى په كورونو خپلو كې (مړه) پړمخي پراته نسكور پر ځنګنونو. او (هلاك كړى مو وو قوم د) عاد او ثمود، او په تحقيق ښكاره شوي دي تاسې ته (اهلاك) له كورونو د دوى (چې ورانې كنډوالې يې پرتې دي).

تفسير: يعني د دوى د كليو كنډوالې او ويجاړې او ورانې شوې ودانۍ تاسې ليدلي دي، ښايي چې له هغو څخه پند او عبرت واخلئ !.

وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ اَعْمَالَهُمْ فَصَدَّهُمْ عَنِ السَّبِيْلِ وَكَانُوْا مُسْتَبْصِرِيْنَ ۝٣٨

او ښايسته كړي وو دوى ته شيطان عملونه د دوى، پس اړولي وو (دغه شيطان) دوى له لارې د حق (چې د خپلو انبياوو متابعت يې ونه كړ)، او وو دوى بينايان (هوښياران).

تفسیر: یعنې د دنیا په کارونو کې پوه او هوښیار وو، او په خپل زعم او اټکل کې پوهان او عاقلان وو، مګر سره له هغه د شیطان د تېرایستلو او غولولو څخه یې نجات ونه موند.

وَقَارُونَ وَفِرْعَوْنَ وَهَامَانَ ۖ وَلَقَدْ جَاءَهُم مُّوسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانُوا سَابِقِينَ ﴿٣٩﴾

او (هلاک کړي مو وو) قارون او فرعون او (وزیر یې) هامان، او خامخا په تحقیق راغلی وو دوی ته موسی په معجزاتو ښکاره وو سره، پس تکبّر وکړ دوی په ځمکه (د مصر) کې، او نه وو دوی ړومبی کیدونکي (له حکم او عذابه ځمونږ).

تفسیر: یعنې سره له دې نه چې د قدرت ښکاره معجزات یې ولیده، بیا هم د الله تعالی په مخ کې یې خپله غاړه کنښېنبوده، او له کبره او غروره او لویي څخه لږ څه هم راښکته نشول.

بالآخره نتیجه یې څه شوه؟ آیا دوی د خپلې دغې لویي او مشرتوب له سببه له عذابه څخه نجات وموند، یا «العیاذ بالله» الله تعالی یې پخپلو عذابونو کې سترې او ستومان کړ؟.

فَكُلًّا أَخَذْنَا بِذَنبِهِ ۖ فَمِنْهُم مَّنْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِ حَاصِبًا وَمِنْهُم مَّنْ أَخَذَتْهُ الصَّيْحَةُ وَمِنْهُم مَّنْ خَسَفْنَا بِهِ الْأَرْضَ وَمِنْهُم مَّنْ أَغْرَقْنَا ۚ

پس هر یو له دغو مذکورینو ونیول مونږ په (سبب) د ګناه خپلې یې، پس ځینې د دوی هغه څوک دي چې ولېږل مونږ پرې سخت (کاڼي ورونکی) باد، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې ونیول دوی چغې (چې زړونه یې وچاودل)، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې ښکته ننه ایست مونږ دوی په ځمکه کې، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې غرق کړل مونږ دوی (په اوبو کې).

تفسیر: یعنې له دوی څخې هر یوه ته سم د دوی له جرمه سزا ورکړه شوه، پس ځینې د دوی هغه څوک دي چې ولېږل مونږ پرې سخت کاڼي ورونکی باد، دغه د لوط علیه السلام قوم دی، ځینو عادیان هم په دوی کې داخل کړي دي، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې ونیوه دوی چغې او زړه یې وچاود، دغه ثمودیان وو او اهل المدین ورسره، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې راپورته کړه مونږ ځمکه پر دوی باندې، او په کې ډوب مو کړ، یعنې قارون لکه چې د «القصص» په سورت کې تېر شو، او ځینې له دوی هغه څوک دي چې غرق کړل مونږ دوی په اوبو کې، دغه فرعون او هامان او قبطیان دي، او ځینو د نوح علیه السلام قوم هم په دوی کې داخل کړی دی.

وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيَظْلِمَهُمْ وَلَٰكِن كَانُوا أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿٤٠﴾

او نه وو الله چې ظلم یې کړی وی پر هغو، ولیکن وو دوی پر ځانونو خپلو به یې ظلم کاوه (په کفر او معصیت سره).

تفسیر: یعنې د الله تعالی شان داسې نه دی، چې کوم کار مخالف له عدله او انصافه یا بې موقعه وکړي، د الله تعالی لوی دربار له ګردو عیوبو او نقائصو او معایبو څخه په کلي ډول سره مبرأ او منزّه دی، ظلم خو هلته له سره متصور نه دی، هو ! پخپله بندګان پر خپلو ځانونو ظلم او تېری کوي، یعنې داسې اعمال ترې صادریږي، چې د هغو نتیجه لامحاله د دوی په حق کې بده او خرابه ده.

مَثَلُ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَوْلِيَآءَ كَمَثَلِ الْعَنْكَبُوْتِ ۚ اِتَّخَذَتْ بَيْتًا ؕ وَ اِنَّ اَوْهَنَ الْبُيُوْتِ لَبَيْتُ الْعَنْكَبُوْتِ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۱﴾

مثل حال د هغو کسانو چې نیولي دي دوی بې له الله دوستان (معبودان) لکه مثل حال د عنکبوت غنې جولاګي داسې دی چې ونیسي (جوړ کړي) یو کور (له تارونو خپلو)، او بېشکه ډېر ضعیف د ټولو کورونو خامخا کور د غنې دی، که چېرې وئ دوی چې پوهېدلی (نو د غیر الله عبادت به یې نه کاوه).

تفسیر: یعنې کور د دې لپاره وي چې د انسانانو ځان او مال په هغه کې محفوظ، مصئون او مأمون وي، نو د غنې (جولاګي) ځالې ته هیڅوک کور نشي ویلی، چې په ادنی یوه اهتزاز او خوځولو سره شکیږي، همدغه مثال د هغو کسانو دی چې ماسوا له الله ځنې نور کسان د خپلو ځانونو لپاره معبودان نیسي، او هغوی د خپلو ځانونو لپاره نجات ورکوونکي محافظان ګڼي، حال دا چې بې د الله تعالی د ارادې او مشیته هیڅ یو فلاح او نجاح خارجي صورت نشي موندلی.

اِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ مِنْ شَيْءٍ ؕ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۴۲﴾

بېشکه چې الله ته معلوم دي هر هغه چې بولي یې (عبادت یې کوي) دوی غیر له الله له هر څیزه چې وي، او همدی دی ډېر غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ډېر حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: یعنې ممکن وو چې اوریدونکي تعجّب وکړي چې ګرد معبودان یې څرنګه په یوه ځنځیر کې سره وتړل، او هیڅ یو یې د دوی له منځه جلا او مستثنی ونه فرمایه، ځینې بُتانو ته، ځینې اور ته، ځینې اوبو ته، ځینې باد ته، ځینې لمر او ستوریو ته، ځینې انبیاء یا پرښتو ته عبادت کوي، نو الله تعالی فرمایي چې: پاک الله ته دغه ګرد شیان معلوم او عیان دي، که د دوی له منځه یو تن هم د مستقل قدرت، قوّت او اختیار خاوند وی؛ نو الله تعالی د دغو ګردو (ټولو) نفي نه کوله، الله تعالی د هیڅا رفاقت او ملګرتوب ته ضرورت نه لري، ځکه چې ډېر زبردست زورور ذات دی، له سره جرګو او مشورو ته حاجت نه لري، ولې چې مطلق حکیم دی.

وَتِلْكَ الْاَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ ۚ وَمَا يَعْقِلُهَآ اِلَّا الْعٰلِمُوْنَ ﴿۴۳﴾

او دغه مذکوره مثالونه (په قرآن کې) بیانوو مونږ لپاره د خلقو، او نه پوهیږي پر دغو (مثالونو) مګر هغه پوهندګان (چې ښخ د خبرې راسپړي).

تفسیر: یعنې د مکې معظمې مشرکینو به ویل چې: الله تعالی د غنې جولاګي او د مچانو او د نورو حقیرو او سپکو شیانو مثالونه بیان فرمایي، چې د ده له عظمته سره منافي دي؛ نو د دغه جواب ورکوي چې دغسې مثالونه د خپل موقع په لحاظ نهایت موزون او پر «ممثل له» په پوره ډول سره منطبق کیږي، مګر د داسې مثالونو پر مطلب یواځې پوهان په ښه ډول سره پوهیږي، جاهلان او ناپوهان او بې وقوفان کله پرې پوهېدی شي؟ د مثال انطباق د مثال ورکوونکي پر حیثیت نه ښایي چې وکړی شي، بلکه د هر هغه شي مثال چې ورکړی شوی دی؛ ښایي د هم هغه حیثیت ته وکتلی شي، که هغه حقیر او کمزور وي؛ نو ښایي چې تمثیل یې هم هغسې له حقیرو او کمزورو شیانو څخه وي، د مثال ورکوونکي عظمت له ده سره بیخي ارتباط او تعلّق نه لري.

خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ؕ

پیدا کړي دي الله اسمانونه او ځمکه په حق سره (څرنګه چې مناسب وو).

تفسیر: یعنې په نهایت حکمت سره یې جوړ کړ، او بېکاره یې نه دي جوړ کړي.

اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّلْمُؤْمِنِیْنَ ۝

بېشکه په دغه (تخلیق یا تمثیل) کې خامخا لوی دلیل (د قدرت) دی لپاره د مؤمنانو (چې همدوی پرې نفع اخلي).

تفسیر: یعنې کله چې الله تعالی اسمانونه او ځمکې یواځې جوړ کړي دي؛ نو په نورو وړو کیو وړو کیو کارونو کې به دی کله شریک، ملګري یا مددګار ته څه احتیاج لري؟ (معاذ الله) که ورته ضرورت وی؛ نو په هغو لویو لویو کارونو کې به وی.

اُتْلُ مَاۤ اُوْحِیَ اِلَیْكَ مِنَ الْكِتٰبِ وَاَقِمِ الصَّلٰوةَ ؕ اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْكَرِ ؕ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ اَكْبَرُ ؕ وَاللّٰهُ یَعْلَمُ مَا تَصْنَعُوْنَ ۝

ولوله (ای محمده !) هغه چې وحي کړی شوې ده تاته له کتاب نه، او قائموه (سم اداء کوه سره له ټولو حقوقو) لمونځ، بېشکه لمونځ منع کوي (لمونځ کوونکي) له بې حیایۍ او له بدکار څخه، او خامخا یادول د الله ډېر لوی دي، او الله ته معلوم دي هر هغه چې کوئ یې تاسې.

تفسیر: یعنې د لوی قرآن تل تلاوت کوه ! څو چې زړه دې مضبوط او قوي شي، او د تلاوت اجر او ثواب بېل در په برخه شي، د لمانځه په سبب د بدیو نه منع کېدل دوه معنی ګانې لري: یوه د تسبّب په طریقه، یعنې الله تعالی په لمانځه کې داسې خاصیت او تأثیر اېښی دی، چې لمونځ کوونکی له ګناهونو او بدیو څخه ساتي، لکه چې د کومې دوا استعمال تبه او نور امراض له سرې شکوي، او نه یې پربېږدي چې پرې راشي، په دغه صورت کې ښایي په یاد یې ولرئ چې د دوا لپاره دغه امر ضرور نه دی، چې هغه یواځې یو خوراک د ناروغتیا د لرې کولو لپاره کافي شي، ځینې دواګانې په خاص مقدار سره تر یوې مودې پورې په لازمي ډول خوړل کېږي، نو وروسته بیا دوا خپل تأثیر ښکاره کوي، مشروط په دې چې رنځور کوم داسې شی استعمال نه کړي چې د دې دوا له خاصیت سره منافي وي.

بله معنی یې داسې کېدی شي چې له بدیو څنې د لمانځه په برکت منع کېدل ښایي د اقتضاء په ډول وي، یعنې د لمانځه هر یو هیئت او د ده د هر یو ذکر مقتضي دی، هغه انسان چې همدا اوس د الله تعالی په دربار کې د خپل عُبودیت، اطاعت، خُشوع، خضوع او تذلّل او د الله تعالی د الوهیت، ربوبیت، مالك الملكوتیت اظهار او اقرار کړی دی؛ نو اوس له لمانځه وروسته او له مسجد نه د باندې دې هم په هم هغه خپل عهد او پیمان باندې ټینګ ولاړ وي، او بدعهدي او شرارت دې نه کوي، او د هغه لوی ذات له احکامو څخه دې منحرف نشي، ګواکې د لمانځه هره یوه اداء، لمونځ کوونکي ته په پنځو وختونو کې داسې حکم ورکوي چې: ای د عبودیت او بندګی مدعي ! تاته ښایي چې په رښتیا سره د عابدانو او د الله تعالی د خاصو بندګانو په شان اعمال او افعال ولرئ ! ځکه چې لمونځ د حال په ژبه سره له تانه غواړي چې د شرارت او سرکشی او بې حیایی څخه په څنګ شه !.

هو ! دغه دې واضح وي چې د هر لمانځه د نهي او منع کولو درجه به هم هغومره وي، چې د هغه په اداء کولو کې د الله تعالی له یاده لمونځ کوونکی غافل نه وي، ځکه چې لمونځ تش د څو ځلې پاڅېدلو او کېناستلو نوم نه دی، له

ټولو څخه لوی شی په لمانځه کې دا دی چې د الله تعالی قدرت، عظمت، کمال او جلال مستحضر وي، او خپله ژبه او زړه سره موافق وي، هغومره به د ده زړه د لمانځه د منع کولو غړ اوري، او په هم هغه اندازه دغسې لمونځ د منهیاتو په مخنیوي کې مؤثر ثابتیږي.

﴿وَلَذِكْرُ اللَّهِ أَكْبَرُ﴾ «او خامخا ذکر یادول د الله تعالی ډېر لوی دي»، یعنې لمونځ به له بدیو څخې ولې انسان نه منع کوي؛ کله چې هغه د الله تعالی د یادولو ډېر ښه صورت دی، لکه چې الله تعالی وایي: ﴿وَأَقِمِ الصَّلَوٰةَ لِذِكْرِىٓ﴾ د طه سورت اوله رکوع»، او د الله تعالی یاد ډېر لوی شی دی، دغه د الله تعالی ذکر هغه مقدّس شی دی، چې هغه ته د لمانځه جهاد او د ګردو عباداتو روح ویلی شو، که د الله تعالی ذکر نه وي؛ نو عبادت به څه وی؟ یو بې روحه جسد او بې معنی لفظ به وی، د ابوالدرداء رضي الله تعالی عنه او د نورو احادیثو په لحاظ عالمانو هم دغسې فیصله کړېده چې له ذکر الله (د الله تعالی یاد) څخه بل کوم لوی عبادت نشته، اصلي فضیلت هم ده لره دی.

بنده لره ښایي چې هیڅ وخت د الله تعالی له ذکر او فکر نه غافل نشي، بالخاصه په کوم وخت کې چې کومې بدۍ ته یې میلان پیدا شي؛ نو فورا ښایي د الله تعالی عظمت او جلال وریاد کړي، او لـه هغې منع شـي، په قـرآن او حدیث کې راغلي دي: څه وخت چې بنده خپل الله یادوي؛ نو الله تعالی هم دی یادوي.

وَلَا تُجَٰدِلُوٓا۟ أَهْلَ ٱلْكِتَٰبِ إِلَّا بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ إِلَّا ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ مِنْهُمْ

او جګړه مه کوئ تاسې (ای مؤمنانو) له کتابیانو سره مګر په هغه (خصلت) سره چې هغه ډېر ښه وي، مګر هغه کسان چې ظلم یې وکړ له دوی څخې (نو ورسره په توری مجادله کوئ).

**تفسیر:** یعنې د مشرکانو دین له اساسه غلطه دی، د کتابیانو دین اصلاً حق او رښتیا وو، نو له کتابیانو سره د مشرکانو په شان جګړه مه کوئ ! چې له بېخه د هغوی خبرې باطلې او پرې کړئ، بلکه په نرمی، صبر او تحمّل سره په ضروري خبرو باندې دوی وپوهوئ !، هو ! هغه کسان چې د دوی له منځه ښکاره بې انصافي، ظلم، عناد او سرتمبګي کوي؛ له هغوی سره په مناسب صورت د سختې او تشدد معامله کولی شئ، او له دې نه وروسته دوی په سزا هم رسولی شئ !.

وَقُولُوٓا۟ ءَامَنَّا بِٱلَّذِىٓ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَأُنزِلَ إِلَيْكُمْ

او ووایئ تاسې چې ایمان راوړی دی مونږ په هغه (قرآن) چې نازل کړی شوی دی مونږ ته، او (په هغه کتابونو چې) نازل کړی شوي دي تاسې ته.

**تفسیر:** یعنې لکه څنګه چې مونږ په عظیم الشأن قرآن ایمان راوړی دی، په دې مو هم ایمان راوړی دی، چې الله تعالی ستاسې د هدایت لپاره موسی او عیسی او نورو انبیاوو علیهم السلام ته چې کوم کتابونه او احکام لیږلي دي؛ هغه ګرد حق او رښتیا دي، او د هغو یو حرف هم غلط نه وو، که څه هم اوس هغه اسماني کتابونه په خپل هم هغه اصلي صورت او حقیقت ستاسې په لاسونو کې نه دي پاتې.

وَإِلَٰهُنَا وَإِلَٰهُكُمْ وَٰحِدٌ وَنَحْنُ لَهُۥ مُسْلِمُونَ ﴿۴۶﴾

او الله څمونږ او الله ستاسې یو دی، او مونږ خاص الله ته غاړه ایښودونکي (موحدان) یو.

**تفسیر:** یعنې څمونږ او ستاسې اصلي معبود یو دی، یواځې دغومره فرق په منځ کې شته، چې مونږ یواځې د هم هغه الله تعالی په حکم عمل کوو، او تاسې له هغه څخه لرې شوي یئ، او نورو ته مو هم د الوهیت حقوق او اختیارات ورکړي، مثلاً عُزیر یا احبارو او رهبانانو ته، سربېره په دې مونږ د الله تعالی ګرد احکام ومنل، او د ده د ګردو انبیاوو او کتابونو

تصديق مو و کړ، او په حقه او رښتيا سره يې منو، او د ده د وروستي حکم په مقابل کې مو غاړه کېښوده، او تاسې ځينې ومنل، او ځينې مو ونه منل، او له وروستي تصديق څخه بيخي منکر شوئ.

وَكَذَٰلِكَ أَنزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ ۚ فَالَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۖ وَمِنْ هَٰؤُلَاءِ مَن يُؤْمِنُ بِهِ ۚ

او همداسې (چې نازل کړي وو مونږ په نورو انبياوو کتابونه) نازل کړی دی مونږ په تا کتاب (قرآن)، پس هغه کسان چې ورکړی دی مونږ دوی ته کتاب (تورات)؛ ايمان راوړي دوی په دې (قرآن)، او ځينې له دغو (عربو او نورو څخه) هغه څوک دي چې ايمان راوړي په دې.

تفسير: هم هغسې چې د پخوانيو انبياوو صحيفې او کتابونه په يوه پسې به بل نازلېده؛ همداسې په نبي آخر الزمان همدغه لاځواب مقدس کتاب نازل شوی دی؛ نو تاسې د هغه له منلو څخه ولې دومره انکار کوئ؟.

وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا الْكَافِرُونَ ﴿٤٧﴾

او نه منکرېږي په آيتونو ځمونږ مګر کافران.

تفسير: يعني هغه کتابيان چې د خپلو حقاني کتابونو په مفهوم او مدلول په ښه شان سره پوهېدلي دي؛ هغوی به دغه قرآن هم ومني، او انصافاً هم ښايي چې ويې مني، لکه چې له هغوی ځينې هغه کسان چې منصفان دي، هغوی د ده صداقت د زړه له کومې نه يوازې کتابيان بلکه د عربو ځينې خلق هم چې په پخوانيو کتابونو بيخي نه پوهيږي؛ دغه قرآن هم مني، په حقيقت کې د عظيم الشأن قرآن د صداقت دلائل دومره روښانه دي چې له حق پټوونکو او نه منونکو خلقو نه پرته بل هيڅوک د ده له صداقت او منلو نشي منکرېدی.

وَمَا كُنتَ تَتْلُو مِن قَبْلِهِ مِن كِتَابٍ وَلَا تَخُطُّهُ بِيَمِينِكَ ۖ إِذًا لَّارْتَابَ الْمُبْطِلُونَ ﴿٤٨﴾

او نه وې ته (ای محمده !) چې لوست به تا پخوا له دې قرآن څخه کوم کتاب (له پخوانيو کتابونو نه)، او نه به دې ليکه دغه (کتاب) په ښي لاس خپل، (او که چېرې وی ته ليکونکی، لوستونکی)؛ نو هلته به خامخا شک کاوه باطلوونکو (خلکو).

تفسير: د قرآن له نزول څخه پخوا د رسول الله صلی الله عليه وسلم څلويښت کاله په همدغو مکيانو کې تېر شول، ټول په دې پوهيږي او خبر دي چې په دغو څلويښتو کلونو کې محمد صلی الله عليه وسلم هيڅ يو معلم او استاذ ته نه دی ناست، نه يې کوم کتاب لوستی دی، او نه يې په خپل مبارک لاس کې قلم اخيستی دی، که داسې وی؛ نو امکان يې درلود چې دغو باطل ويونکو به داسې شُبهې او تصوّر کاوه چې ممکن محمد صلی الله عليه وسلم به ټول پخواني کتابونه لوستي وي، او د هغو له منځه به يې ځينې ياداشتونه او اقتباسات کړي وي، او بيا به يې هغه ورو ورو په خپل عبارت او سبک سره جوړ کړي وي، چې اوس يې خلقو ته اوروي، که څه هم په هغه تقدير سره به هم داسې ادعاء غلطه وه، ځکه چې هيڅ يو ليکونکی او لوستونکی انسان لا څه بلکه که د ټولې دنيا علماء او فضلاء سره راټول شي، او د ګردو مخلوقاتو قوّت په دغه لاره کې صرف شي؛ خو بيا هم دوی داسې يو بې مثاله کتاب نشي جوړولی، خو سره د هغه هم دروغجنانو ته د خبرو جوړولو يوه زمينه په لاس ورتله، ليکن کله چې د محمد صلی الله عليه وسلم امينتوب له مسلّماتو او منل شوو خبرو څخه دی؛ نو د دغې سطحي شبهې بيخ هم وويستل شو، خو سره له دې هم ضد کوونکو او معاندينو له خپلو دروغو پلمو او چټي خبرو خوله ونه تړله، لکه چې داسې به يې ويل: ﴿وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَىٰ عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا﴾ (۱۸ جزء د «الفرقان» سورت اوله رکوع، (۵) آيت).

بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ ؕ

بلکه دغه (قرآن) آیتونه دي ښکاره په سینو د هغو کسانو کې چې ورکړې شوی دی هغوی ته علم (فهم یعني مؤمنان چې یادوي یې).

**تفسیر:** یعني رسول الله صلی الله علیه وسلم له چا څخه لیکل او لوستل نه دي زده کړي، بلکه دغه وحي چې په ده نازلیږي؛ تل به بې د لیکلو سینه په سینه جاري پاتې وي، او د الله تعالی په فضل به د علماوو، فضلاوو، حفاظو، او قراؤو په سینو کې دده د الفاظو او معانیو حفاظت کیږي، نور اسماني کتابونه نه یادېدل او دغه کتاب یادیږي، او په حفظ سره ساتلی او باقي پاتې دی، لیکل پرې سربېره او علاوه دي (له موضح القرآن په لږ توضیح سره).

وَمَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَآ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۹﴾

او نه منکریږي په آیتونو ځمونږ (هیڅوک) مګر بې انصافان ظالمان.

تفسیر: یعني د بې انصافۍ علاج به څرنګه وکړی شي، که یو سړی له خپله ځانه سره داسې غوټه کړې وي، چې زه به له سره رښتیا خبره نه منم، او د ډېرو روښانو او څرګندو شیانو څخه به هم انکار کوم.

وَقَالُوْا لَوْلَآ اُنْزِلَ عَلَيْهِ اٰيٰتٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاِنَّمَآ اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۵۰﴾

او وایي (دغه د مکي کفار) چې ولې نه نازلولی شي په دغه (محمد) معجزې له (طرفه د) رب د ده، ووایه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه همدا خبره ده چې معجزې (خاص) په نزد د الله دي، او بېشکه همدا خبره ده چې زه ویروونکی ښکاره یم (له جحیم څخه).

تفسیر: یعني دغه خبره ځمونږ په واک او قبضه کې نه ده، چې کومه معجزه چې تاسې یې غواړئ؛ زه هم هغه معجزه تاسې ته دروښیم، او نه د کوم نبي تصدیق په دې خبرو څه ارتباط لري، زما کار او وظیفه دا ده: چې د بدۍ د بدو نتائجو څخه تاسې خبر کړم، او په ښکاره او صافو الفاظو کې تاسې ته د خیر او شر ګردې لارې دروښیم، که حق تعالی ځما د تصدیق لپاره څه معجزې هم تاسې ته ښیي؛ اختیار لري.

اَوَلَمْ يَكْفِهِمْ اَنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ يُتْلٰى عَلَيْهِمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَرَحْمَةً وَّذِكْرٰى لِقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۵۱﴾

آیا نه دی کافي دوی ته (له جهته د معجزې دا چې) بېشکه مونږ نازل کړی دی مونږ په تا کتاب (قرآن) چې تل لوستل کیږي په دوی باندې، بېشکه چې په دې (کتاب باقي الی الأبد) کې خامخا رحمت مهرباني او ذکر پند دی لپاره د (هغه) قوم چې ایمان راوړي.

**تفسیر:** یعني آیا دغه معجزه نه ده کافي؟ له دغه کتاب نه چې تاسې ته یې د شپې او ورځې لولې او اوروي؛ بله معجزه به څه وي؟ آیا نه ګورئ چې د دې کتاب منونکو او تابعانو څرنګه عقل او پوهه پیدا کړې ده؟ او څنګه د الله تعالی له رحمته مستفید شوي دي؟.

قُلْ كَفٰى بِاللّٰهِ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ شَهِيْدًا ۚ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

ووایه (ای محمده دوی ته) کافي دی الله ځما او ستاسې په منځ کې شاهد (په صدق ځما او تکذیب ستاسې)، چې ورمعلوم دي هر هغه شی چې په اسمانونو کې دی، او (هر هغه شی چې) په ځمکه کې دی.

**تفسیر:** یعنې د الله تعالی په څمکه او د ده تر اسمان لاندې زه ښکاره او په څرګند ډول د رسالت دعوی کوم، چې هغه یې اوري او ګوري، بیا ورځ په ورځ ماته او څما نورو ملګرو ته ترقي او پرمختګ راپه برخه کوي، او تعداد او شمېر مو را زیاتوي، او پرله پسې ډول څما د دغې دعوی عملي تصدیق کوي، څما په ژبه څما په لاسونو د قدرت داسې خارق العاده معجزې څرګندېږي چې د هغو د مثل او نظیر له وړاندې کولو څخه ټول پیریان او انسانان عاجز دي، آیا څما د صداقت لپاره د الله تعالی دغه شهادت کافي نه دی؟.

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْبَاطِلِ وَكَفَرُوْا بِاللّٰهِ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۵۲﴾

او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی په باطل او کافران شوي دي په الله؛ دغه کسان هم دوی زیانکاران دي.

**تفسیر:** د انسان لویه بدبختي او زیان دا دی چې دروغ خبره که څه هم وړه او په ښکاره ډول باطله هم وي؛ ژر مني، او رښتیا خبره که څه هم صافه او ښکاره او واضحه هم وي؛ نه یې مني، او ترې انکار کوي.

وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۗ وَلَوْلَآ اَجَلٌ مُّسَمًّى لَّجَآءَهُمُ الْعَذَابُ ۗ وَلَيَاْتِيَنَّهُمْ بَغْتَةً وَّهُمْ لَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۵۳﴾

او تلوار کوي (دغه کفار) په تا په راتلو د عذاب، او که نه وی (هغه) نېټه ټاکلې (مقرر) شوې (لپاره د عذاب)؛ نو خامخا راغلی به وو دغو (ژر غوښتونکو) ته عذاب (سمدلاسه)، او خامخا به راشي دا عذاب دوی ته یو ناڅاپه حال دا چې دوی به نه وي خبر (د راتګ په وخت یې).

**تفسیر:** یعنې منکران وایي: که مونږ په ناحقه او باطله یو؛ نو په مونږ باندې ولې په همدې دنیا کې آفت او بلا نه نازلېږي؟ نو د دوی د دغې غوښتنې ځواب داسې ورکړ شو چې: که نه وی هغه نېټه ټاکلې شوې؛ نو خامخا به راغلی وو دغو ژر غوښتونکو ته عذاب سمدلاسه، او خامخا رابه شي دا عذاب دوی ته یو ناڅاپه حال دا چې دوی به نه وي خبر د راتګ په وخت یې، یعنې هر شی په خپل ټاکلي وخت کې راتلونکی دی، مه وارخطا کېږئ ! تاسې هرومرو (خامخا) په هم هغه مطلوبه بلا او آفت اخته کېدونکي یئ، شاه صاحب لیکي: «د دغه امّت عذاب همدغه وو چې د مسلمانانو په لاس قتل او قید شول، لکه د مکې معظمې په فتح کې ګرد مکیان بېخبره وو، چې محمّدي لښکر په دوی ورغی».

يَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ ۗ وَاِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيْطَةٌ ۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿۵۴﴾ يَوْمَ يَغْشٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ وَيَقُوْلُ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۵۵﴾

تلوار کوي کفّار په تا په (راتلو) د عذاب (په دنیا کې) حال دا چې بېشکه دوزخ خامخا احاطه کوونکی دی په کافرانو. (یاده کړه ای محمده ! هغه) ورځ چې لاندې به کړي دوی عذاب له پاسه د دوی، او له لاندې د پښو د دوی نه، او وبه وایي دوی ته الله: وڅکئ تاسې (خوند د سزا) د هغه (عمل) چې وئ تاسې چې کاوه به مو (په دنیا کې).

**تفسیر:** دلته به له عذاب څخه ښایي د آخرت عذاب مراد وي، لکه چې له ځواب څخه یې معلومېږي، دوی عذاب په دنیا کې غواړي، خو له مرګه وروسته د دغو ګردو خبرو حقایق دوی ته د سر په سترګو وربښکاره کېږي، او دوی به ګوري چې په څه شان به دوی د دوزخ په اور کې سوځي؟.

حدیث کې راغلي دي چې: د هغه مال به مار ګرځاوه شي، او د ده په غاړه کې به لکه غاړکۍ لوېږي، او دی به له ستوني څخه نیسي او څیروي به یې، او داسې به ورته وایي چې: زه ستا مال یم، او زه ستا خزانه یم.

يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّ اَرْضِيْ وَاسِعَةٌ فَاِيَّايَ فَاعْبُدُوْنِ ﴿۵۶﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ثُمَّ اِلَيْنَا تُرْجَعُوْنَ ﴿۵۷﴾

ای بندګانو ځما هغو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) بېشکه ځمکه ځما ارته ده (نو د وېرې له ځای نه د أمن ځای ته هجرت وکړئ !) پس خاص ما لره عبادت کوئ تاسې (په هر هغه ځای کې چې مأمون اوسئ ! دغه د مکې معظمې کفار که تاسې تکلیفوي؛ نو د الله تعالی ځمکه خو تنګه نه ده، بل چېرې لاړ شئ او هلته د الله تعالی په عبادت مشغول شئ !). هر یو نفس (ژوندی) څکونکی د مرګ دی (یعني خامخا مري) بیا (خاص) مونږ ته (په بعث بعد الموت سره) راوستل کېږئ (د جزاء لپاره).

تفسیر: شاه صاحب لیکي: «کله چې کفارو په مکه معظمه کې ډېر زور او قوت د مسلمانانو په خلاف پیدا کړ؛ نو مسلمانانو ته حکم وشو چې هجرت وکړئ ! لکه چې د مسلمانانو اتیا یا درې اتیا کورنی حبشې ته لاړې، د همغه په نسبت دلته وایي چې: دغه د څو ورځو ژوندون هر چېرته چې ممکن وي؛ هم هغلته یې تېر کړئ ! بیا وروسته له هغه ګرد سره یو ځای کېدونکي یئ، او ماته راتلونکي یئ، په دغه سره مهاجرینو ته تسلي ورکړې شوه، څو په دوی د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم مفارقت او د وطن لرېوالی آسان شي، او د ډېرو زیاتو تکلیفونو او زحمتونو احساس ونه کړي».

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ لَنُبَوِّئَنَّهُمْ مِّنَ الْجَنَّةِ غُرَفًا تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ نِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۵۸﴾ الَّذِيْنَ صَبَرُوْا وَعَلٰى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُوْنَ ﴿۵۹﴾

او (هغه) کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ خامخا ځای به ورکړو مونږ هرومرو دوی ته له جنته په جګو ماڼیو کې، چې بهېږي لاندې له (ونو او ماڼیو د) هغو ویالې (څلور)، حال دا چې تل به اوسېږي په دغو (ماڼیو کې)، ښه دی اجر د دغو عمل کوونکو. هغه (عاملان) چې صبر یې کړی (په طاعت او مصیبت او له معصیت نه) او (خاص) په رب خپل توکل کوي.

تفسیر: یعني هر څوک چې له صبر او استقلال سره سره د ایمان او اسلام په لاره ټینګ ثابت او قائم وي، او په پاک الله اعتماد او توکل وکړي، او خپل کور او کهول پرېږدي، او له خپل وطن څخه ووځي؛ نو دوی ته به د دغه وطن په بدل هغه بل وطن ور په برخه کېږي، او د دې ځای له کورونو څخه به ښه کورونه ورته ورکړل شي.

وَكَاَيِّنْ مِّنْ دَآبَّةٍ لَّا تَحْمِلُ رِزْقَهَا ۖ اَللّٰهُ يَرْزُقُهَا وَاِيَّاكُمْ ۖ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۶۰﴾

او ډېر دي له خوځېدونکو (ذیروحو په ځمکه) چې نه پورته کوي دوی رزق خپل (له وجې د ضعف) الله رزق رسوي هغوی ته او تاسې ته هم، او همدی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه پوه دی (په ټولو احوالو).

تفسیر: په دغه سره یې د روزۍ له پلوه اطمینان او ډاډ راکړ، چې د زیاترو ساکښانو په ځایونو کې د بلې ورځې خوراک او روزي نه وي، په نوې ورځې کې نورې روزي وررسېږي (موضح)، بیا نو هغه الله تعالی چې ساکښانو ته رزق، روزي رسوي، آیا خپلو وفادارو او خاصو بندګانو ته به یې نه رسوي؟ ! ښه وپوهېږئ چې حقیقي رزّاق خو هم هغه دی چې د ګردو خبرې اوري، د دوی د زړونو په اخلاص پوهېږي، د هر یوه ظاهر او باطن ده ته څرګند او ښکاره دی، د هیڅا

زيار او خواري د ده په دربار کې بې ځايه نه پاتې کيږي، هغه خلق چې د الله تعالى په لاره کې خپل وطن پرېږدي؛ او محض لله وتلي وي؛ د دوی دغه هجرت له سره نه ضايع کيږي، دوی دې د معيشت د وسائلو او د سامان د وړلو چې له خپله ځانه سره يې يوسي؛ هيڅ فکر ونه کړي، څومره ساکنبان دي چې د دوی رزق روزي د دوی په شاګانو نه ده بار، او له خپلې روزۍ سره هر چېرې نه ګرځي، خو حقيقي رازق دوی ته هره ورځ رزق او روزي رسوي.

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ فَأَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٦١﴾

او قسم دی که سوال وکړې ته له دوی نه (ای محمده ! داسې) چې چا پيدا کړي دي اسمانونه او ځمکه؟ او مسخر کړی دی لمر او سپوږمۍ؛ نو خامخا وايي (د مکې کفار چې) الله (پيدا کړي دي، له دغه اقراره سره سره) پس څرنګه دوی ګرځولی شي (له توحيد څخه).

اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاۤءُ مِنْ عِبَادِهٖ وَيَقْدِرُ لَهٗ ۚ إِنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿٦٢﴾

الله پراخوي رزق لپاره د هر هغه چا چې اراده وکړي (د پراخۍ يې) له بندګانو خپلو څخه، او تنګوي يې په ده (که اراده وکړي د تنګۍ يې) بېشکه چې الله په هر شي ښه عالم دی.

تفسير: يعني په مېچ او اندازه کوي يې، داسې نه چې بېخي يې نه ورکوي، بېشکه چې الله تعالى په هر شي باندې ښه عالم دی، يعني په دې باندې يواځې همدی عالم او خبر دی، چې چاته يې ورکړي؟ او څومره يې ورکړي؟.

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَّنْ نَّزَّلَ مِنَ السَّمَاۤءِ مَاۤءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ۚ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿٦٣﴾

او بيا قسم دی چې که سوال وکړې ته له دوی نه (ای محمده ! داسې) چې چا نازلې کړې دي (له طرفه) د اسمان څخه اوبه پس ژوندۍ کړې يې ده په دې اوبو سره ځمکه پس له مرګه (او وچوالي) د دې؟ نو خامخا وايي دوی چې: الله (نازلې کړې دي، نو له دغه اقرار سره سره ولې شريک ورته پيدا کوي؟) ووايه (ای محمده !) ټوله ثناء الله ته ده، بلکه زياتره د دوی نه لري عقل (څکه د دوی اقوال تناقض لري).

تفسير: يعني باران هم په هر چا او هر ځای يو برابر نه اوري، همداسې د حال او احوال په بدلولو کې هم دومره ځنډ او ډيل نه پيښيږي، يا کله الله په لږ وخت کې خوار او غريب غني او شتمن ګرځوي.

وَمَا هٰذِهِ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَاۤ إِلَّا لَهْوٌ وَّلَعِبٌ ۚ وَإِنَّ الدَّارَ الْأٰخِرَةَ لَهِيَ الْحَيَوَانُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿٦٤﴾

او نه دی دغه ژوندون د دنيا مګر عبث او لوبې دي، او بېشکه چې دار، آخرت خامخا هم هغه دی واقعي حيات (او ژوندون) که چېرې وی دوی چې پوهېدلی (نو نه به يې غوره کوله دنيا پـه آخرت).

تفسير: يعني انسان ته ښايي چې د دې دنيا په څو ورځني ژوندون کې زياتره د آخرت په فکر کې اوسي، ځکه چې اصلي او دائمي ژوندون هم هغه دی، نه ښايي چې څوک د دنيا په لوبو او تماشو کې ډوب او د آخرت له فکر او ياد څخه بيخي غافل شي، بلکه د دې دنيا په ژوندون کې ښايي د هغې دنيا لپاره تياری وکړي، او د عقبی د سفر لپاره ځان ته توښه برابره کړي.

فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۚ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ إِذَا هُمْ يُشْرِكُونَ ﴿٦٥﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ ۚ وَلِيَتَمَتَّعُوا ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿٦٦﴾

پس هر کله چې سپاره شي دوی په بېړۍ کې؛ نو بولي دوی (هلته یوائې) الله په داسې حال کې چې خالص کوونکي وي دوی دغه (الله) ته دین خپل، پس هر کله چې نجات ورکړي (الله) دوی ته وچې ته؛ ناڅاپه دوی بیا شریکان نیسي له الله سره (لکه پخوا). لپاره د دې چې کافران منکران شي دوی په هغه نعمت چې ورکړی وو مونږ دوی ته او چې ګټه (فائده) واخلي دوی، پس ژر به پوه شي دوی (په عاقبت د کار خپل).

تفسیر: یعنې لازم خو داسې وو چې انسان په دنیوي عیش او عشرت کې په دې اندازه اخته او مشغول نشي؛ چې د الله تعالی او د عقبی له یاده بیخي غافل شي، لیکن د خلقو دا عادت دی هر کله چې د دوی جهاز یا بېړۍ طوفاني شي؛ نو په ډېر اخلاص او پوره عقیدې سره پاک الله یادوي، بیا څه وخت چې هغه آفت او مصیبت د دوی څخه لرې شي، او صحیح او سلامت په وچه کې قدم کیږدي؛ نو د الله تعالی هغه ګرد انعامونه او احسانونه هیروي، بیا د هم هغو باطلو معبودانو په عبادت او صفت لګیا کیږي، ګواکې مطلب دا شو چې د الله تعالی د نعمتونو ناشکري او کفران کوي، او په دنیوي خوندونو او چرچو کې مشغولیږي، خیر دی، دوی دې څو ورځې نور هم د خپل زړه دغه هوسونه او ارمانونه وباسي، هغه وخت ډېر نژدې دی چې دوی ته دغه خبره روښانه او ښکاره شي، چې د دغه بغاوت، شرارت احسان هېرول د نعمت کفران او د نورو ګناهونو نتایج به څرنګه وي؟.

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا جَعَلْنَا حَرَمًا آمِنًا وَيُتَخَطَّفُ النَّاسُ مِنْ حَوْلِهِمْ ۚ أَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُونَ وَبِنِعْمَةِ اللَّهِ يَكْفُرُونَ ﴿٦٧﴾

آیا نهویني (نه پوهیږي) چې بېشکه مونږ ګرځولی مو دی (دا مکه) حرم امن ورکوونکی حال دا چې چور کیږي (تښتولی کیږي) نور خلق له چاپېره د دوی، آیا پس په باطلو معبودانو ایمان راوړي دوی او په نعمت د الله (چې حرم کې اوسېدل او امن دی) کافران کیږي.

تفسیر: د مکې معظمې خلق د بیت الله په برکت د دښمنانو د تیري او ضرر څخه محفوظ وو، حال دا چې نور د عربستان په ګردو ځایونو کې د فتنې، فساد، جدال، قتال، جنګ او جنجال بازارونه تاوده وو، نو دوی د باطلو معبودانو په دروغو احسان مني، مګر د پاک الله دغه واضح او ښکاره احسان نه مني.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَوْ كَذَّبَ بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُ ۚ أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِلْكَافِرِينَ ﴿٦٨﴾

او څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې له ځانه وتړي په الله دروغ (چې بې حجّته ورته شریک نیسي) یا تکذیب وکړي د حق (رسول او قرآن) کله چې راشي هغه ده ته (بلکه له ده نه ډېر ظالم نشته)، آیا نشته (بلکه شته) په دوزخ کې ځای د هستوګنې لپاره د کافرانو.

تفسیر: یعنې له ګردو څنې لوی ظلم او ناانصافي دا ده چې بل کوم مخلوق د دې لوی خالق شریک وګرځول شي، یا پاک الله ته د داسې خبرو نسبت وکړی شي چې د الوهیت له شان او عظمت سره ورې او لایق نه وي، یا د هغو انبیاوو په تکذیب او دروغجن شمېرلو لاس پورې کړي چې د رب العزّت له جانبه یې دیانت او صداقت راوړی وي، آیا دغو

ظالمانو ته نه ده معلومه چې د منکرانو د هستوګنې ځای دوزخ دی، چې په داسې بیباکی او بېحیایی سره د عقل او انصاف په مرئ چاړه کاږي.

وَالَّذِيْنَ جٰهَدُوْا فِيْنَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ط

او هر چې هغه کسان چې کوښښ کوي تل په (دین د) مونږ کې؛ خامخا وبه ښیو خامخا دوی ته لارې خپلې.

تفسیر: یعني هغه کسان چې یواځې د الله تعالی لپاره محنتونه کوي، او تکلیفونه ګالي، او په راز راز مجاهداتو کې مشغول او لګیا وي؛ الله تعالی دوی ته د بصیرت یوه خاصه رڼا او نور ور په برخه کوي، او د طاعت توفیق ورته په برخه کوي.

وَاِنَّ اللّٰهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۶۹﴾

او بېشکه الله خامخا له نیکو کارانو سره دی (په مرسته کې).

تفسیر: یعني د الله تعالی حمایت او مرسته د نیکي کوونکو سره وي.

تمّت سورة العنکبوت بفضل الله تعالی، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الرُّومِ

«د (الروم) سورت مکي دی، پرته د (۱۷) آیت چې مدني دی، (۶۰) آیتونه او (۶) رکوع لري، په تلاوت کې (۳۰) او په نزول کې (۸۴) سورت دی، وروسته د «الانشقاق» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمٓ ﴿١﴾ غُلِبَتِ الرُّوْمُ ﴿٢﴾ فِيْٓ اَدْنَى الْاَرْضِ

مغلوب کړی شو (اهل د) روم په متّصله (نژدې) ځمکه کې.

تفسیر: له ﴿اَدْنَى الْاَرْضِ﴾ لګېدلې ځمکې یا رانژدې ځمکې څخه مراد د «أذرعات» او «بصری» په منځ کې سیمه ده، چې د شام په سرحد د حجاز سره نښتې او معظمې مکې ته نژدې پرته ده، یا به ترې فلسطین مراد وي، چې د رومیانو ملك نژدې وو، یا به د «ابن عمر جزیره» مراد وي، چې «فارس» ته ډېره نژدې پرته ده، ابن حجر د ړومبني قول تصحیح کړې ده، والله أعلم.

وَهُمْ مِّنْۢ بَعْدِ غَلَبِهِمْ سَيَغْلِبُوْنَ ﴿٣﴾ فِيْ بِضْعِ سِنِيْنَ ۗ

او دغه (رومیان به) وروسته له دغه مغلوبیت د دوی ژر به بیا غالب شي (په پارسیانو). په څو کلونو کې.

تفسیر: یعنې د نهو کلونو په منځ کې به رومیان غالب شي، ځکه چې په لُغت او حدیث کې د «بضع» اطلاق له دریو څخه تر نهو پورې شوی دی، واقعه داسې ده: د دغې زمانې دوه لوی سلطنتونه «فارس» او«روم» له ډېرو کلونو را په دېخوا په خپلو منځونو کې سره په جنګ اخته وو، مکیانو ته د روم او د فارس د جنګونو په متعلق خبرونه او اطلاعات ورسېدل، په دغه وخت کې د نبي کریم د نبوي دعوې او اسلامي تحریک، د دغوخلقو په زړونو کې د جنګي خبرونو سره یوه خاصه علاقه پیدا کړې وه، د فارس مجوسي آتش پرستانو د مکې معظمې له بُت پرستانو سره یو ځانته علاقه او ارتباط درلود، او هغوی به یې د مذهب له مخې خپل بلل، او د روم نصرانیانو به د اهل الکتاب توب لامله د مسلمانانو لږ تر لږه د هغو د نژدې دوستانو په منزله ګڼل کېدل، کله چې به د فارسیانو د غلبې خبر راورسېد؛ نو د مکې معظمې مشرکانو به خوشالي کوله، او په هغه سره به یې د مسلمانانو په مقابل کې په خپله غلبه او بري باندې فال نیوه، او پخپلو زړونو کې به یې د ډېرو ښو توقّعاتو امیدونه تړل، مسلمانانو ته به هم بالطبع صدمه رسېدله، چې ولې عیسایي اهل کتاب د آتش پرستو مجوسانو په مقابل کې مغلوب شول؟ چې مونږ دلته د دغو مشرکانو د طعنو او پیغورونو مورد ګرځیدلي یو، بالآخر د خسرو پرویز (ثاني کیخسرو) په عهد کې فارسیانو رومیانو ته ډېره سخته ماتې ورکړه، شام، مصر او وړو کې ایشیا او نور ډېر ممالك د روم د قیصر (هرقل) له لاسه ووتل، او په خپله دی د فارس د لښکرو له لاسه په (قسطنطنیه) کې کلابند او محصور شو، ظاهرًا هیڅ یو داسې وسایل او وسایط په نظر نه راتلل چې د هغه په اثر به بیا رومیان په خپلو پښو درېدل، او د فارسیانو د دغه بري او تسلط څخه به یې خپل ځانونه بچ کول، چې د دغو حالاتو او اوضاعو د لیدلو څنې به د مکې معظمې مشرکان ډېر خوښ او خوشالېدل، او مسلمانان به یې ځورول، تر دې پورې چې ځینو له

مشرکینو څخه ابوبکر الصدیق رضي الله تعالی عنه ته وویل چې: «نن څمونږ ایراني ورونړو ستاسې رومي ورونو ته ماتې ورکړه، او محوه يې کړل، سبا به مونږ تاسې ته هم داسې ماتې درکړو، او له منځه به مو لرې کړو»، په دغه وخت کې عظیم الشأن قرآن د ظاهري اسبابو د سلسلې څخه بیخي مخالف داسې یو عام اعلان وکړ چې: «بېشکه نن ورځ رومیان د فارسیانو له لاسه مغلوب شوي دي، لیکن د نهو کلونو په موده کې به بیا رومیان په فارسیانو غالب، منصور او بریالي کیږي»، د دغو وړاندوینو په اساس ابو بکر الصدیق رضي الله تعالی عنه له ځینو مشرکینو سره شرط وتړه، تر دغه وخته پورې داسې شرط تړل نه وو حرام شوي: «که تر دومره کلونو پورې رومیان بریالي نشول؛ نو زه به سل اوښان تاسې ته درکړم، که نه تاسې به همدومره اوښان ماته راکوئ !»، په ابتداء کې ابوبکر الصدیق رضي الله تعالی عنه له خپلې رايې سره سم د (بضع سنين) میعاد لږ څه ټاکلی وو، بیا يې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په ارشاد (بضع) په لغوي مدلول یعنې په نهو کلونو معاهده وتړله، دلته د روم هرقل د خپل له لاسه تللي اقتدار او وقار د اعادې په نسبت ترتیبات ونیول، او په اقداماتو يې لاس پورې کړ.

د الله تعالی شان او قُدرت ته وګورئ چې د قرآن له دغو وړاندوینو سره سم برابر د نهو کلونو په موده کې یعنې له هجرت څخه یو کال وروسته عیناً د بدر په ورځ کې څه وخت چې مسلمانانو ته د پاک الله په فضل پر مشرکانو ښکاره فتح او بری حاصل شو، او په خوشالی او خوښی کې وو؛ د دغه خبر له اورېدلو څخه لا خوښ او خوشاله شول، چې د روم کتابیانو ته هم الله تعالی پر پارسي مجوسیانو بری او فتح ورکړه، په دغه ضمن کې د مکې شریفې مشرکين لا سپک او ذلیل شول، د عظیم الشأن قرآن د دغې محیّر العقولې وړاندوینې د صداقت له مخې ډېر کسان په اسلام مشرّف شول، او ابو بکر صدیق خپل هغه سل اوښان د مکې د مشرکانو څخه واخیستل، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم له ارشاد سره سم خیرات کړل شول، فلله الحمد علی نعمائه وآلائه الباهرة.

لِلّٰهِ الْاَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ ۚ

خاص الله ته دی حکم امر پخوا (له دې نه چې پارس په روم باندې بری ومومي) او ورسته (له دې نه چې روم پر پارس غلبه ومومي، او امر يې تل نافذ دی).

تفسیر: یعنې ړومبی د پارسیانو غالبول او د رومیانو مغلوبول، او بیا دغه اوضاع په بل مخ اړول دغه ټول امور د الله تعالی په قبضه او اختیار کې دي، او یوازې په هم دغومره خبرې سره دکوم قوم د مقبولیت او مردودیت فیصله نشي کېدی: ﴿وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ﴾.

وَيَوْمَئِذٍ يَّفْرَحُ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝ بِنَصْرِ اللّٰهِ ۭ يَنْصُرُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الرَّحِيْمُ ۝

او په دغه ورځ (د غلبې د روم په پارس) خوشاله به شي مؤمنان. په نصرت د الله (له کتابیانو سره په مجوسیانو)، مرسته کوي (الله) له هر هغه چا سره چې اراده وکړي د نصرت يې، او همدی دی ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: یو خو په دغه ورځ د فتح په خوښی برسېره هغوی ته دغه خوښي هم حاصله شوه چې رومي کتابیان چې نسبتًا مسلمانانو ته نژدې وو؛ په پارسي مجوسیانو غالب شول، او د قرآن د دغو وړاندوینو په صداقت باندې ګرد سره وپوهېدل، او د سر په سترګو يې ولیدل، او د مکې شریفې کفارو ته هر راز ذلت ور په برخه شو، نو د هر چا په نسبت چې الله تعالی اراده وکړي چې مغلوب يې وګرځوي؛ نو هیڅوک يې مخه نشي نیولی، او په هر چا چې د مهربانی اراده وکړي؛ نو يې بې له هیڅ مزاحمت او ممانعت ضرور غالب ګرځوي.

وَعْدَ اللّٰهِ ۭ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ وَعْدَهٗ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ۝

وعده کړې ده الله (وعده کول) خلاف نه کوي الله له وعدې خپلې، وليکن زياتره خلق نه پوهيږي.

تفسير: يعنې زياتره خلق نه پوهيږي چې په غالبولو او مغلوبولو کې د الله تعالی څه څه حکمتونه شته، او کله چې دی د قدرت کوم کار کول غواړي؛ نو د هغه له مخه ګرد ظاهري موانع او عوايق لرې کيږي، نو ځکه زياتر ظاهري ليدونکي خلق بې له ظاهري اسبابو په الله تعالی اعتماد نه لري، او د يو څا د عارضي بري او غلبې له ليدلو څخه داسې ګڼي چې د الله تعالی په دربار کې به هم هغه مقبول وي.

يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ښ وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ ۝

(بلکه) پوهيږي په ښکاره سطحي شيانو له دغه ژوندون لږ «خسيس» د دنيا څخه حال دا چې دوی له آخرت نه (چې مقصود له ودانی د دې دنيا دی؛) هم دوی غافلان دي.

تفسير: يعنې دغه خلق د دنيوي ژوندون په ظاهري سطح باندې پوهيږي، د دې دنيا آرام، ښايست، سينګار، خوړل، څښل، اغوستل، يوې کول، کرل، ربېل، ګټې کول، په خوندونو او مزو سره ژوندون او ښې شپې ورځې تېرول د دوی د پوهې او تحقيق انتهايي ځای او پړاو دی، او له دې نه له سره نه دي خبر چې پر دغه فاني ژوندون پورې د بل يو باقي ژوندون سلسله هم تړلې ده، چې کله انسانان هلته وررسيږي؛ نو د دغه ژوندون ښه او بد نتايج او ثمرې ور د مخه کيږي.

اَوَلَمْ يَتَفَكَّرُوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ ۣ مَا خَلَقَ اللّٰهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَآ اِلَّا بِالْحَقِّ وَاَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ

آيا فکر نه کوي دوی په نفسونو خپلو کې (چې عالم صغير دی) چې نه دي پيدا کړي الله دغه اسمانونه او ځمکه او هر هغه چې په منځ د دغو دواړو کې دي مګر په حقه سره او په نېټې ټاکلې شوې.

تفسير: يعنې د دنيا دغه زبردست انتظام خوشې چټې او بېکاره نه دی، دغه پيدايښت ضرور څه مقصود او غرض لري، چې هغه به په آخرت کې څرګنديږي، هو ! که دغه سلسله تل تر تله همداسې چلېدی؛ نو بيا به يوه خبره وی، ليکن د دې دنيا په تغيراتو او احوالو کې له فکر او غور کولو څخه دغه را څرګنديږي چې دغه دنيا هم ضرور يو حد او انتها لري، لهذا په يوې ټاکلې وعدې به دغه دنيا فناء کيږي، او بل عالم به منځ ته راشي.

وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ النَّاسِ بِلِقَاۗئِ رَبِّهِمْ لَكٰفِرُوْنَ ۝

او بېشکه چې ډېر له خلقو (کفارو) په ملاقات د رب خپل (په قيامت کې) خامخا منکران دي.

تفسير: دوی داسې ګڼي چې له سره الله تعالی ته ورتګ نشته، او نه به الله تعالی له مونږ څخه څه حساب او کتاب اخلي، او نه به څه سوال او ځواب راڅخه کوي.

اَوَلَمْ يَسِيْرُوْا فِي الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَانُوْٓا اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً
وَّاَثَارُوا الْاَرْضَ وَعَمَرُوْهَآ اَكْثَرَ مِمَّا عَمَرُوْهَا وَجَاۗءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ ۭ فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ
وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝

آیا نه ګرځي دغه کفار په ځمکه کې، پس ودې ګوري دا چې څرنګه وه آخره خاتمه د هغو (کسانو) چې تېر شوي دي پخوا له دوی نه، چې وو هغه پخواني ملتونه ډېر سخت له دغو کفّارو له جهته د قوّت، او څیروله به دوی ځمکه، او ودانه کړې وه (کفارو پخوانیو) دغه ځمکه ډېره له هغې ځمکې نه چې ودانه کړې ده (د مکې کفّارو) دغه (ځمکه)، او راغلي وو دوی ته رسولان د دوی په ښکاره دلائلو، او نه وو الله چې ظلم وکړي په دوی باندې، ولیکن وو دوی چې پر نفسونو خپلو به یې ظلم کاوه (د انبیاوو په تکذیب سره).

تفسیر: یعنې ډېر زورور زورور قومونه مثلاً عاد او ثمود چې پخپل کښت (فصل) یې د ځمکې مخ ډېر ښه ودان کړی وو، او په کې یې کاریزونه، ویالې، کوهي ایستلي وو، او د دغو منکرینو په نسبت د ډېر قوت خاوندان وو، او تمدن ته یې زیاته ترقي ورکړې وه، او د ځمکې مخ یې له دوی نه زیات ودان کړی وو، بالآخر هغوی نن ورځ چېرې دي؟ کله چې د الله تعالی رسولان له ښکاره معجزاتو او روښانو احکامو سره راغلل، او دوی د هغوی تکذیب وکړ، نو آیا تاسو ونه لیدل، او وا مو نهورېدل چې د هغوی عاقبت او آخره خاتمه څرنګه شوه؟ او په څه شان سره تباه او هلاك وګرځېدل؟.

ثُمَّ كَانَ عَاقِبَةَ الَّذِينَ أَسَاءُوا السُّوأَىٰ أَن كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ وَكَانُوا بِهَا يَسْتَهْزِئُونَ ﴿۱۰﴾

بیا وه آخره خاتمه د هغو کسانو چې بد یې کړي وو؛ ډېر بد (ځای چې جهنّم دی) په دې سبب چې تکذیب کړی دی دوی د آیتونو د الله، او وو دوی (په دنیا کې چې) په دغو آیتونو به یې مسخرې کولې.

تفسیر: موجوده اقوامو ته لازم دي چې د تېرو اقوامو له احوالو څخه پند او عبرت واخلي، څکه هر یوه قوم چې پر کوم بد کار سزا موندلې وه؛ بل ته په هم هغه بد کار باندې هم هغسې سزا ورکول کېږي.

اللَّهُ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۱۱﴾ وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يُبْلِسُ الْمُجْرِمُونَ ﴿۱۲﴾
وَلَمْ يَكُن لَّهُم مِّن شُرَكَائِهِمْ شُفَعَاءُ وَكَانُوا بِشُرَكَائِهِمْ كَافِرِينَ ﴿۱۳﴾

الله اول ځلي پیدا کوي خلق، بیا اعاده کوي هغه، بیا به خاص همدغه (الله) ته بیول کېږئ تاسې (د مجازاتو لپاره). او په هغه ورځ چې قائم شي قیامت؛ ناامیده به شي ګناهګاران (مشرکان). او نه به وي دوی ته له شریکانو د دوی څخه کوم شفاعت کوونکی، او شي به دوی له شریکانو خپلو (پس له ناامیدی) بېزاره منکران.

تفسیر: یعنې هغه شیان چې د الله تعالی شریکان ګرځوئ، کله چې په مطلوب وخت کې په کار ورنشي؛ نو ورڅخه منکرېږي، او داسې به وایي: ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾ «قسم دی په الله چې مونږ مشرکانو نه وو».

وَيَوْمَ تَقُومُ السَّاعَةُ يَوْمَئِذٍ يَتَفَرَّقُونَ ﴿۱۴﴾

او په هغه ورځ چې ودرېږي قیامت؛ په دغه ورځ کې تار په تار به شي ګرد مخلوقات.

تفسیر: یعنې نېك او بد او هر قسم خلق به سره بېل کړل شي، او هره یوه ډله به جلا جلا خپلو ځایونو ته ورسوله شي، چې تفصیل یې په دغه راتلونکي آیت کې راځي:

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَهُمْ فِي رَوْضَةٍ يُحْبَرُونَ ﴿١٥﴾

پس هر چې هغه (کسان) دي چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه)؛ پس دوی به په روضه (د جنّت) کې خوشاله کړل شي (چې له ډېرې خوشالی به يې مخونه تجلّي کوي).

**تفسير:** يعنې له هر راز لذّت او خوښۍ څخه به مستفيد او متمتّع شي، دغه د نېکانو د هستوګنې ځای دی، له دې نه وروسته د بدانو ځای هم راښيي، مطلب يې دا چې د دواړو په منځ کې به داسې تفريق او بېلتون وکړ شي چې له هغه څخه به بل زيات کوم بېلتون امکان ونه لري.

وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الْآخِرَةِ فَأُولَٰئِكَ فِي الْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿١٦﴾
فَسُبْحَانَ اللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ ﴿١٧﴾ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا
وَحِينَ تُظْهِرُونَ ﴿١٨﴾

او هر چې هغه کسان دي چې کافران شوي دي او دروغجن يې شميرلي دي آيتونه (د قرآن) ځمونږ او (کافران دي) په ملاقات د آخرت؛ پس دغه کسان په عذاب کې حاضر کړی شوي دي. پس (تسبيح ووايئ) تسبيح د الله کله چې دا خل شئ په ښېګا کې او کله چې ننوځئ په سبا کې. او خاص همده ته ده ثناء صفت په اسمانونو او په ځمکه کې او کله چې ننوځئ په آخر د ورځې کې او کله چې ننوځئ په (وخت د) ماسپښين کې.

**تفسير:** يعنې که جنت غواړئ نو الله تعالی ياد کړئ چې د هغه ياد په زړونو، ژبه، اعضاوو او ټولو جوارحو سره کيږي، په لمانځه کې د دريو واړو ډولو ياد سره جمع کړی شوی دی، او د فرض لمانځه وختونه هم دغه دي چې په دغه آيت کې بيان شوي دي، يعنې سبا او ماښام چې مغرب او عشاء پکې شامل دي، د ورځې وروستنی وخت مازديګر او ماسپښين کله چې لمر له نصف النهاره واوړي، چې همدغه پنځه وختونه د لمانځه دي، په دغو وختونو کې د الله تعالی د رحمت يا قُدرت يا عظمت آثار لا زيات ښکاره او ظاهريږي.

ښايي په دغه آيت کې ﴿وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ﴾ ويلو سره يې د دې مطلب يادونه کړي وي چې د تسبيح او تنزيه او يادولو لايق هم هغه جامع الصفات ذات کېدی شي، چې د ده حمد «ثناء» او ښېګڼې د اسمانونو او ځمکې ټول کائنات د حال او قال په ژبه بيانوي، بل کوم مجبور او عاجز مخلوق د دې خبرې استحقاق نه لري، که څه هم په نظر کې ډېر لوی هم ښکاره شي، وروسته له دې نه د لوی الله تعالی د ځينو عظيمو شئونو او کاملو صفاتو بيان دی، څو د معبوديت استحقاق په پوره ډول څرګند شي، په دغه ضمن کې د بعث بعد الموت په مسئله هم کافي رڼا اچولی شوې ده.

يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ وَكَذَٰلِكَ
تُخْرَجُونَ ﴿١٩﴾

راوباسي (الله) ژوندی له مړي (لکه مرغه له هګۍ نه، عالم له جاهل څخه)، او راوباسي (الله) مړی له ژوندي (لکه جاهل له عالم څخه، هګۍ له مرغه څخه)، او ژوندي کوي ځمکه پس له مړګه (وچوالي) د هغې، او په مثل (د راويستلو د دغو شيانو) راويستل کېږئ تاسې (له قبرونو څخه).

وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ اِذَاۤ اَنْتُمْ بَشَرٌ تَنْتَشِرُوْنَ ﴿۲۰﴾

او يوه له نښو د دغه (الله) دا ده چې: پيدا يې كړي (اصل د) تاسې له خاورو، بيا اوس تاسې يئ بشر خور پرې ئ (په ځمكه كې).

تفسير: يعني آدم عليه السلام يې له خاورو څخه پيدا كړ، بيا د الله تعالى دغه كامله قدرت او بالغه حكمت ته وګورئ چې د هغه اولاد يې په څه اندازه ډېر او تر كومې پيمانې يې په ځمكه كې خور كړ.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖۤ اَنْ خَلَقَ لَكُمْ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ اَزْوَاجًا لِّتَسْكُنُوْۤا اِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱﴾

او (ځيني) له نښو د دغه (الله) دا دي چې پيدا كړې يې دي تاسې ته له نفسونو ستاسې ښځې (جوړه) لپاره د دې چې په آرام شئ تاسو د دوی سره (او مطمئن اوسئ)، او ګرځولې يې ده په منځ ستاسې (او د ښځو) كې دوستي او مهرباني، بېشكه په دغه (پيدا كولو د مودت او رحمت په منځ د ازواجو) كې خامخا ډېرې نښې د قدرت دي لپاره د (هغه) قوم چې فكر كوي (د الله په صنع كې).

تفسير: يعني ړومبى يې له خاورو څخه آدم عليه السلام پيدا كړ، بيا يې له آدم عليه السلام څخه د ده جوړه پيدا كړه، څو له هغې څخه انس او اطمينان واخلي، او په خلقي ډول يې د دواړو صنفونو نارينه او ښځې په منځ كې خاص قسم مينه او محبت او الفت واچوو، څو د ازدواج اصلي مقصود ترې حاصل شي، لكه چې د دغو دواړو د اختلاط او ګډ اوسېدلو څخه انساني نسل په دنيا كې خپور شو، لكه چې الله تعالى د النساء د سورت په اوله ركوع ـ اول آيت كې فرمايي: ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ﴾.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ خَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافُ اَلْسِنَتِكُمْ وَاَلْوَانِكُمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّلْعٰلِمِيْنَ ﴿۲۲﴾

او (ځيني) له نښو د دغه (الله)، پيدا كول د اسمانونو او ځمكې او اختلاف دی د ژبو ستاسې او د رنګونو ستاسې، بېشكه په دغه (اختلاف كې) خامخا ډېرې نښې دي لپاره د عالمانو پوهانو.

تفسير: ګرد انسانان يې له يوه موره او پلار څخه پيدا او سره يې مخلوط او مېشته او د ځمكې په ټولو نقاطو كې يې خپاره (خواره) كړل، د هر يوه ژبه او وينا يې سره بېله كړه، كه د يوه مملكت سړی بل ملك ته ورشي، د ژبې په اعتبار محض پردی او اجنبي ښكاري، بيا وګوري چې د دنيا له شروع څخه تر نن ورځې پورې څومره بېشماره انسانان پيدا شوي دي، مګر هيڅ يوه داسې جوړه انسانان نه پيدا كيږي چې د هغوی شونډې، ژبې، لهجه، تلفظ د تكلم طرز او نور خصائص سره يو شان وي، هم هغسې چې د هر انسان شكل او صورت او رنګ او نور سره جلا او ممتاز دي؛ غږ او شونډې او لهجه يې هم بېخي سره بيل دي، هيڅ يو داسې دوه انسانان نه پيدا كيږي چې د دوی په غږ او رنګ، هيئت، وضعيت كې كومه بېلوونكې علامه او نښه نه وي.

وَمِنْ اٰيٰتِهٖ مَنَامُكُمْ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَابْتِغَآؤُكُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ؕ

او (ځيني) له نښو د دغه (الله) خوب ستاسې دی په شپه كې او په ورځ كې او طلب ستاسې دی (په دغه ورځ كې) له فضله د الله.

تفسیر: شاه صاحب لیکي چې: «د انسان دوه حالتونه سره بدلیږي، که ویده شي؛ نو د تیږې په شان بې هوشه او بېخبره پروت وي، او که د رزق او روزۍ په تلاش لګیا شي؛ نو په داسې پوهه او هوښیارۍ لګیا کیږي چې د ده په شان بل هیڅوک هوښیار نه لیدل کیږي، په اصل کې شپه د خوب لپاره ده، او ورځ د روزۍ د تلاش لپاره مخصوصه ده، نو ځکه په همدغو دواړو وختونو کې همدغه دواړه کارونه اجرا کیږي».

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ﴿٢٣﴾

بېشکه په دې (خوب او معیشت) کې خامخا ډېرې نښې دي لپاره (د هغه) قوم چې اوري.

تفسیر: یعنې څه چې اوري؛ په یاد یې ساتي، لکه چې د ابن کثیر (رحمه الله) په تفسیر کې راغلي دي، شاه صاحب لیکي چې: «د خپل خوب حالات نهویني، لیکن د نورو خلقو د ژبو څخه یې اوري»، (موضح)، دغه د «یسمعون» د لفظ د اختیارولو نکته شوه.

وَمِنْ آيَاتِهِ يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَطَمَعًا

او (ځینې) له نښو د دغه (الله دا دي) چې ښيي تاسې ته برېښنا لپاره د وېرې (له تندر) او لپاره د امید د باران.

تفسیر: د برق او د برېښنا د سخت برېښېدلو څخه خلق وېرېږي، او دغسې تصوّر کوي نه چې تندر راولوېږي، یا باران له خپلې اندازې څخه زیات ونه ورېږي، چې د هغه له امله جاني او مالي تلفات واقع نه شي، او هیله او امید هم ورته لري چې که دغه ورېدل ګټور واقع شي، نو ګرد دنیوي کارونه به ښه وچلیږي، هغه مسافران چې په دغو تورو تیارو کې سفر کوي، کله دغه د برېښنا برېښېدل ځان ته غنیمت ګڼي، چې تر ډېر لرې پورې د هغې رڼا په اثر لار او نور شیان ورځرګندیږي، او کله کله دوی هم ترې وېرېږي.

وَيُنَزِّلُ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَيُحْيِي بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿٢٤﴾

او نازلوي (الله) له (طرفه) د اسمان څخه اوبه پس ژوندي کوي په دغو (اوبو) سره ځمکه وروسته له مرګ (وچوالي) د دې، بېشکه چې په دغه (برېښنا او باران) کې خامخا ډېرې نښې دي لپاره (د هغه) قوم چې عقل لري (او تدبّر کوي په امورو کې).

تفسیر: یعنې له دې نه وپوهېږئ ! چې له مرګ څخه وروسته ستاسې بیا ژوندي کول کوم مشکل کار نه دی.

وَمِنْ آيَاتِهِ أَن تَقُومَ السَّمَاءُ وَالْأَرْضُ بِأَمْرِهِ ۚ ثُمَّ إِذَا دَعَاكُمْ دَعْوَةً مِّنَ الْأَرْضِ إِذَا أَنتُمْ تَخْرُجُونَ ﴿٢٥﴾

او (ځینې) له نښو د دغه (الله دا دي) چې ولاړ دی اسمان (پاس بې له ستنو او نه لوېږي) او ځمکه په امر حکم د الله سره، بیا کله چې راوبولي تاسې په بللو سره له ځمکې څخه ناڅاپه تاسې راووځئ (ژوندي له قبرونو خپلو څخه).

تفسیر: ړومبی د ځمکې او اسمان د پیدا کولو ذکر وشو، دلته یې د هغو بقاء او قیام وښود چې هغه هم د الله تعالی په حکم سره دي، او له سره امکان نه لري چې هیڅ یو له دوی نه د خپل ثقل د مرکز څخه بې ځایه شي، یا یو په بل باندې

ولوېږي، او د کائناتو نظام تار په تار او وران او ویجاړ کړي، یعنې ځمکه او اسمان به تر هغه پورې چې د الله تعالی حکم وي؛ قائم وي، بیا څه وخت چې د ځمکې او د اسمان او د نورو موجوداتو میعاد پوره شي، او سرته ورسیږي؛ د الله تعالی د یوه غږ په اثر به تاسې ګرد له خپلو قبرونو څخه ژوندي راوځئ، او د حشر میدان ته به منډې وهئ، او هلته به سره ټولېږئ.

وَلَهُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۲۶﴾

او خاص الله لره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې خلقًا، ملكا وعبيدًا)، دا ټول دغه (الله) ته اطاعت کوونکي دي.

تفسیر: یعنې د اسمانونو او ځمکې ټول اوسیدونکي د ده مخلوق، مملوك، او بندګان دی، او هیڅوك له سره د دغې خبرې قوّت او طاقت نه لري چې د الله تعالی د دغو تکویني احکامو له قبول څخه غاړه وغړولی شي.

وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيْدُهٗ وَهُوَ اَهْوَنُ عَلَيْهِ ؕ وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾

او (الله) هغه هغه (مطلق قادر) دی چې اول ځلي پیدا کوي خلق بیا به راژوندي کوي (دا خلق) او دغه (بیا ژوندي راپاڅول هم) ډېر اسان دي په دغه (الله)، او خاص الله لره دی شان، صفت ډېر لوی، لوړ (اوچت) په اسمانونو کې او په ځمکه کې، او همدی دی ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

تفسیر: یعنې د الله تعالی د قدرت په مقابل کې ټول سره برابر دي، لیکن ستاسې د محسوساتو په اعتبار د اول ځل پیدا کولو په نسبت د دویم ځل اعاده خو ښایي چې ډېر سهل او آسان وي؛ نو بیا به دغه ډېره عجیبه خبره وي چې په اول ځل پیدایښت کې تاسې الله تعالی قادر منئ، مګر په دویم ځل کې د الله تعالی پیدایښت مستبعد ګڼئ؟.

﴿وَلَهُ الْمَثَلُ الْاَعْلٰى﴾ الآیة ـ «او خاص الله تعالی لره دی شان، صفت ډېر لوی لوړ په اسمانونو او ځمکه کې الخ».
تنبیه: یعنې له اعلی څخه اعلی صفات او له لوړ څخه لوړ شان د الله تعالی شان او صفتونه دي، په اسمان او ځمکه کې هیڅ یو شی په خپل حسن او ښه والي کې د الله تعالی له شان سره برابر او مساوي لا څه بلکه ادنی صفت او مشابهت ته یې هم ځان نشي رسولی، الله تعالی له ګردو شیانو څخه په جلال، جمال، کمال، مثال او نورو ممیزاتو (خصوصیاتو) کې اولی، اعلی، ارفع او اقدس دی، چې د مخلوقاتو په وهم او تصوّر کې راتلی نشي.

ضَرَبَ لَكُمْ مَّثَلًا مِّنْ اَنْفُسِكُمْ ؕ هَلْ لَّكُمْ مِّنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ شُرَكَآءَ فِيْ مَا رَزَقْنٰكُمْ فَاَنْتُمْ فِيْهِ سَوَآءٌ تَخَافُوْنَهُمْ كَخِيْفَتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ ﴿۲۸﴾

بیانوي (الله) تاسې ته (ای مشرکانو) یو مثال له ځانونو ستاسې څخه (هغه مثال دا دی:) آیا شته له هغو مریانو چې مالکان شوي دي د هغو ښي لاسونه ستاسې څه شریکان (له تاسې سره) په هغه څه کې چې درکړی دی مونږ تاسې ته، پس تاسې (او دا مریان مو) په هغه (رزق) کې سره برابر یئ، چې ویرېږئ له هغو لکه ویرېدل ستاسې له نفسونو (د نورو اصیلانو شریکانو) خپلو؟، په مثل د دغه (تفصیل) په تفصیل سره بیانوو مونږ آیتونه لپاره (د هغه) قوم چې عقل لري (تدبّر کوي).

تفسیر: یعنې د شرک په قباحت او بطلان د پوهولو لپاره الله تعالی ستاسې له احوالو څنې یو مثال راوړي او بیانوي، او هغه دا دی چې: ستاسې د لاس مال (یعنې وینځه او مریي) چې تاسې د هغو ظاهري او مجازي مالکان او خاوندان یئ، په خپله هغه روزي او مال او متاع کې چې الله تعالی تاسې ته درکړی دی، آیا هغوی له خپلو ځانونو سره مساوي او برابر منلی شئ؟ لکه چې ستاسې په مشترکو مالونو جایدادونو او شتو کې ستاسې وروڼه او نور اقارب او خپلوان سره شریکان دي، او تل داسې اندېښنه درسره وي، نه چې په هغه مشترک مال کې څه ناجائزه تصرّف او مداخله ونه شي، او که داسې کوم لاسوهنه په هغه کې وشي؛ نو تاسې ترې متأثر او خپه کېږئ، او د هغه په ویش او ترکه کولو پسې لږېږئ، یا لږ تر لږه دغسې پوښتنه کوئ چې ولې څما د اجازې او خوښې څخه پرته هغه کار یا تصرّف په دغه شي کې شوی دی؟ آیا کوم دغسې فکر کوم بادار ته د خپل مریي او خدمتګار په نسبت پیدا کېدی شي؟، او که نه شي پیدا کیدي نو څرنګه به یو مخلوق د الله تعالی سره په الوهیت کې شریک شې؟ داسې خبره یو عقلمن سړې له سره نه شې منلی.

﴿بَلِ اتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوٓا أَهْوَآءَهُم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ فَمَن يَهْدِى مَنْ أَضَلَّ اللَّهُ ۖ وَمَا لَهُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴿٢٩﴾﴾

بلکه متابعت کوي هغه کسان چې ظلم یې کړی دی (په شریک نیولو له الله سره) د آرزوګانو خپلو بې له علم (او حجّت) څخه، پس څوک به سمه صافه لاره وښیي هغه چاته چې ګمراه کړی وي (دی) الله؟ (بلکه هادي نه لري)، او نشته دوی لپاره هیڅوک له مرسته کوونکو (چې خلاص یې کړي له عذاب نه).

تفسیر: یعنې دغه بې انصافه خلق به په داسې ښکاره او څرګندو خبرو څرنګه وپوهیږي حال دا چې هغوی له سره نه غواړي چې ځان پرې وپوهوي؟ بلکه د جهالت او هواپرستی له سببه محض د اوهامو او نفسي غوښتنو په متابعت او پیروۍ کې مشغول او لګیا دي.

﴿فَمَن يَهْدِى﴾ الآية ـ «پس څوک به سمه صافه لاره وښیي هغه چا ته چې ګمراه کړی وی دی الله، بلکه هادي نه لري».

تنبیه: یعنې هر هغه چا ته چې الله تعالی د ده د بې انصافی، جهل، او هواپرستۍ په سبب د حقې لارې تللو او پوهېدلو توفیق ور نه کړي؛ نو څوک به د دغې خبرې طاقت او توان ولري چې هغه پوه کړي او سمه لار ور وښیي؟ یا ورسره مرسته او معاونت وکړي؟ یا یې له ګمراهی او تباهی څنې وژغوري، نو د داسې خلقو له طرفه زیات مه متحسر او مه خپه کېږه ! او له دوی څنې قطع نظر وکړه، او بیخي الله تعالی ته متوجه اوسه ! او په خپل فطري دین ټینګ اوسه !.

﴿فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ۚ فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِى فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ۚ
ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٣٠﴾ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ وَاتَّقُوهُ وَأَقِيمُوا
الصَّلَوٰةَ وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٣١﴾ مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا
لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ ﴿٣٢﴾﴾

پس برابر کړه (ای محمده !) مخ خپل دین ته په داسې حال چې پر حق دین کلک ولاړ یې، لازم ونیسئ دین د الله هغه چې پیدا کړي دي (الله) خلق په هغه (دین)، مه بدلوئ تاسو هغه دین چې الله خلق پر هغه پیدا کړي دي (چې شریک له الله سره پیدا کړئ)، دا هم هغه دین سم دی (چې هیڅ کوږوالی په هغه کې نشته)، ولیکن زیاتره خلق نه پوهیږي (په توحید د الله). حال دا

چې رجوع کوونکي يئ دغه (الله) ته او ويرېږئ له الله او قائموئ (سم درو‌ئ سره له ټولو حقوقو) لمونځ او مه کېږئ تاسې له مشرکانو. (يعنې) له هغو (مشرکانو) چې تار په تار کړی يې دی دين خپل او شوي وو دوی ډلې ډلې، هر يوه ډله (له دوی نه) په هغه (دين) چې له دوی سره دی خوشاله دي.

تفسير: يعنې هر هغه څوک چې له ګمراهی څنې په هيڅ يو شان سره نه غواړي چې ووځي؛ نو هغه پرېږده چې د همدغه کفر او شرک په خټو کې نښتې پروت وي، او ته له دوی نه مخ وګرځوه ! او يواځې له الله تعالی سره خپل تعلّقات ټينګ وساته ! او يواځې د هغه حق دين په پوره توجّه ټينګ ونيسه !.

﴿فِطْرَتَ اللّٰهِ﴾ «لازم ونيسئ تاسې دين د الله تعالی هغه چې پيدا کړي دي الله تعالی خلق په هغه دين» الله تعالی د انسان فطرت او جوړښت په ابتداء کې داسې ګرځولی دی، که دی وغواړي چې په حق ځان پوه کړي او ويې مني؛ نو ځان ورباندې پوهولی او منلی شي، ځکه چې د فطرت له ابتداء څخه يې د خپل اجمالي معرفت يوه سپرغۍ د ده په زړه کې د هدايت د تخم په شان شيندلې ده، که د اطرافو او شاو خوا د خرابو اثراتو څخه متأثر نشي، او په خپل اصلي طبيعت پرېښودل شي؛ نو يقيناً به حق دين اختيار کړي، او بل طرف ته به متوجه نشي، د «ألستُ» د عهد قصه همدغه طرف ته اشاره کوي، او په صحيحو احاديثو کې تصريح ده چې «هر مولود په فطرت د «اسلام» پيدا کيږي، وروسته مور او پلار يې دی يهودي يا نصراني يا مجوسي ګرځوي»، په يوه قدسي حديث کې راغلي دي: «ما خپل بندګان (حنفاء) پيدا کړي دي، بيا شيطانانو دوی اغواء او له سمې لارې ايستلي دي»، په هر حال حق دي، حنيف دين، قيّم دين هغه دين دی؛ چې که انسان په خپل اصلي فطرت پرېښودلی شي؛ نو بالطبع هغه ته متمايل کيږي، د ټولو انسانانو فطرت الله تعالی همداسې پيدا کړی دی، چې په هغه کې له سره تفاوُت او تبديل نشته.

﴿لَا تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللّٰهِ﴾ «نشته له سره بدلول دين د الله ته، او مه يې بدلوئ چې شريک ورسره پيدا کړئ !»، يعنې د اصلي پيدايښت په اعتبار هيڅ فرق او تغيير او تبديل په کې نشته، د هر انساني فرد فطرت د حق د قبول لپاره صالح او مستعد ګرځولی شوی دی، يا يې دا مطلب: په هر هغه فطرت چې الله تعالی خپل مخلوق پيدا کړی دی؛ تاسې په خپل واک او اختيار هغه مه بدلوئ ! او مه يې خرابوئ ! هغه تخم او استعداد چې په تاسې کې کرلی شوی دی؛ هغه په خپلې بې توجی يا بې تميزۍ مه خرابوئ !.

﴿ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ﴾ «دا هم هغه دين سم دی چې هيڅ کوږوالی پر هغه کې نشته، وليکن زياتره خلق نه پوهيږي په توحيد د الله تعالی»، يعنې سمه لاره او حق دين همدغه د فطرت غږ دی، خو زياتره خلق په دغه نکته نه پوهيږي.

﴿مُنِيْبِيْنَ اِلَيْهِ﴾ «حال دا چې تاسې رجوع کوونکي يئ دغه الله ته»، يعنې اصلي دين ټينګ ونيسئ ! او د هم هغه په طرف توبه او رجوع وکړئ ! که محض د دنيوي مصلحت لپاره مو دغه کار وکړ؛ نو دين به مو درست نه وي.

﴿مِنَ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ﴾ يعنې د دين الفطرت له اصولو څخه بېل پاتې شوي دي، او په خپلو اديانو او مذاهبو کې يې نفاق او تفرقه غورځولې ده، ډېرې فرقې يې جوړې کړې دي، د هرې يوې عقيده، مذهب، مشرب او مسلک سره بېل او جلا دی، هر هغه چې په غلطه يا په هوا او هوس يې کومه عقيده قائمه کړه، يا کومه طريقه يې ايجاد کړه؛ نو يوه ټولنه په هغې پسې شوه، لږ څه موده وروسته له هغې څخه ډېرې فرقې جوړې شوې، بيا هره يوه فرقه په خپلو هم هغو ټاکلو اصولو او عقايدو که څه هم هغه ډېر چټي او مهمل هم وي؛ داسې مين ګرځيدلي دي؛ چې د خپلې غلطۍ د امکان تصور يې هم په ماغزو کې نه ګرځي.

وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُم مُّنِيبِينَ إِلَيْهِ ثُمَّ إِذَا أَذَاقَهُم مِّنْهُ رَحْمَةً إِذَا فَرِيقٌ مِّنْهُم بِرَبِّهِمْ يُشْرِكُونَ ﴿٣٣﴾ لِيَكْفُرُوا بِمَا آتَيْنَاهُمْ فَتَمَتَّعُوا فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ ﴿٣٤﴾

او کله چې ورسيږي خلقو ته څه ضرر؛ نو بولي دوی رب خپل په داسې حال کې چې رجوع کوونکي وي خاص الله ته، بيا کله چې وڅکوي (الله) دوی ته له خپله طرفه کوم رحمت؛ ناڅاپه يوه ډله له دوی نه له رب خپل سره شريکان نيسي. لپاره د دې چې ناشکري وکړي (او کافر شي) په هغو (نعمتونو) چې ورکړي دي مونږ دوی ته، پس ګټه اخلئ (ای کفارو څو ورځې)، پس ژر به معلوم کړئ تاسې (عاقبت د عمل خپل).

**تفسير:** يعنې څرنګه چې د هر انسان فطرت په ښو کارونو باندې پوهيږي؛ همدا راز د هر انسان فطرت الله تعالى ته په رجوع کولو هم پوهيږي، لکه چې دا حقيقت د سختۍ په وخت کې څرګنديږي، ډېر لوی کبرجن او سرکښ انسان هم د مصيبت او غم په وخت کې بې اختياره الله تعالى ته رجوع کوي، او د ده په دربار کې په دعا او زارۍ شروع کوي، او په دغه وخت کې يې نور ورو کي وسايل له فکر وځي، او هم هغه واقعي او حقيقي مالک الملک يې په ياد پاتې کيږي، چې د هغه په طرف انساني فطرت لارښوونه کوي، مګر افسوس چې انسان په دغه حالت تر ډېر مودې پورې قايم نه پاتې کيږي، څه وخت چې د الله تعالى په لطف او مهربانۍ مصيبت ورځخه لرې شي، بيا له الله تعالى څخه غافليږي، او د هم هغو باطلو معبودانو په ستاينو لګيا کيږي، ګواکې دوی د خپل دغه وضعيت څخه داسې څرګندوي چې دغه شی د همدغو عطا او ورکړه ده، او الله تعالى هيڅ شی مونږ ته نه دي راکړي (العياذ بالله)، ښه دې څو ورځې مزې کوي، وروسته به معلوميږي چې د دغه کُفر او ناشکرۍ نتيجه څه کيږي؟.

أَمْ أَنزَلْنَا عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا فَهُوَ يَتَكَلَّمُ بِمَا كَانُوا بِهِ يُشْرِكُونَ ﴿٣٥﴾

آيا نازل کړی مونږ په دوی کوم برهان علمي سند، پس هغه خبرې کوي په هغه چې وو دوی په هغه سره شريک پيدا کوي (له الله سره دوی، بلکه نه مو دی نازل کړی).

**تفسير:** يعنې د سليم عقل او انساني فطرت شهادت په صاف ډول سره د شرک او کفر ترديد کوي، نو آيا دوی د هغه په خلاف کوم برهان، حجّت او علمي سند لري؟ چې دغه راوښيي چې د الله تعالى په الوهيت کې بل څوک هم د هغه شريک دی (معاذ الله)، کله چې هيڅوک نشته؛ نو د هغه د معبود ګرځولو استحقاق له کومه شو؟.

وَإِذَا أَذَقْنَا النَّاسَ رَحْمَةً فَرِحُوا بِهَا وَإِن تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ إِذَا هُمْ يَقْنَطُونَ ﴿٣٦﴾

او کله چې وڅکوو مونږ په خلقو څه رحمت؛ نو خوشاله شي دوی په هغه، او که ورسيږي هغوی ته څه سختي په سبب د هغو (اعمالو) چې پخوا ليږلي دي لاسونو د دوی؛ ناڅاپه به بيا دوی نااميده شي (د الله له رحمت څخه).

**تفسير:** يعنې د دغو خلقو عجيب حالت دی، کله چې د الله تعالى له رحمت مهربانۍ او احسان په عيش او عشرت کې له خوشالۍ په خپلو کاليو کې نه ځاييږي، نو خپل حقيقي محسن بيخي هيروي، او که کوم وخت د خپلو اعمالو له شامته په کوم غم يا مصيبت کې اخته شي؛ نو بيخي نااميده او مأيوس شي.

د مؤمن حال د ده په عکس دی، مؤمن په راحت او نعمت کې هم تل خپل حقيقي منعم يادوي، د الله تعالى له فضل څخه خوښی کوي او په زړه او ژبه او عمل سره د الله تعالى حمد او شکر اداء کوي، که په کوم غم او مصيبت کې

مبتلا شي؛ نو هغه په خورا صبر، تحمّل سره ګالي، او له پاک الله تعالی څخه په هغه کې خپل ځان ته مرسته غواړي، او تل دغسې هیله او امید په خپل زړه کې پالي، چې څومره لوی او سخت مصیبت هم چې وي؛ په یقیني ډول د الله تعالی فضل او کرم دغه ګرد سره په بل مخ اړولی شي.

تنبیه: یو آیت یې پخوا له دې نه ویلی وو چې: «خلق د تنګسی او سختۍ په وخت کې خالص د الله تعالی په دربار کې د عرض او نیاز غږ او آواز کوي»، دلته یې دغه وویل چې: «د سختۍ او بدۍ د رسېدلو په وخت کې دوی بې هیلې او ناامیده کیږي»، په دغو دواړو کې هیڅ اختلاف سره نشته، ړومبی حالت یعنې د الله تعالی بلل ابتدایي منزل دی، بیا کله چې سختي او مصیبت اوږدیږي او امتداد مومي؛ نو بالآخره وارخطا او بې هیلې او ناامیده کیږي، یا به د ځینو خلقو احوال هغسې وي، او د ځینو احوال به داسې وي، والله أعلم.

أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَن يَشَاءُ وَيَقْدِرُ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ ﴿٣٧﴾

آیا نه ویني (نه دي خبر) دوی چې بېشکه الله پراخوي رزق هر هغه چا ته چې اراده وکړي، او تنګوي یې (هغه چا ته چې ویې غواړي)، بېشکه په دغه (بسط او قبض) کې خامخا دلائل دي لپاره د (هغه) قوم چې ایمان راوړي.

تفسیر: یعنې کامل ایمان او یقین لرونکی پوهیږي چې د دنیا سختي او نرمي او د روزۍ زیاتوالی او کموالی د پاک الله په لاس کې دي، نو هر هغه وضعیت او احوال چې ورباندې راشي؛ لازم دي چې بنده هغه په صبر او شکر سره ومني ! او په قضا سره خپله خوښي او رضاء ښکاره کړي !، د زحمت او مصیبت په وخت کې دې صبر او تحمّل وکړي ! او هیله من دې اوسي چې الله تعالی په خپل فضل او مرحمت سره دغه ټول زحمت او مصیبت له منځه لرې کوي.

فَآتِ ذَا الْقُرْبَىٰ حَقَّهُ وَالْمِسْكِينَ وَابْنَ السَّبِيلِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لِّلَّذِينَ يُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٣٨﴾

پس ورکړه (ای مؤمنه !) خاوند د قرابت ته حق د ده (چې نیکي او صله رحمي ده) او محتاج ته او مسافر ته، دغه (ورکول د حقوقو) خیر، غوره دي (له امساک څخه) لپاره د هغو کسانو چې د الله تعالی مخ لیدل غواړي، او همدغه ورکوونکي (د حقوقو) هم دوی دي خلاصېدونکي بریالیان (کامیاب).

تفسیر: یعنې هر کله چې د فطرت په شهادت سره دغه ثابته شوه چې حقیقي معبود او رب العالمین هم هغه الله تعالی دی، او د دنیا ګرد نعمتونه د هم هغه پاک الله تعالی ورکړه او عطا ده؛ نو په هغو کسانو چې د ده د لقاء او د لیدلو آرزو او امید لري؛ لازم دي چې د ده د هغه عطاء او ورکړې څخه څه شی د ده په لاره کې صرف کړي !، او د مسافرانو، محتاجانو او بې وسو خپلوانو له احواله ځان خبر او هغوی له خپل ځان څخه خوشاله کړي ! او د خپلوانو حقوق درجه په درجه اداء کړي ! نو دغسې بندګانو ته الله تعالی په دنیا او آخرت کې خیر ور په برخه کوي.

وَمَا آتَيْتُم مِّن رِّبًا لِّيَرْبُوَ فِي أَمْوَالِ النَّاسِ فَلَا يَرْبُو عِندَ اللَّهِ ۖ وَمَا آتَيْتُم مِّن زَكَاةٍ تُرِيدُونَ وَجْهَ اللَّهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُضْعِفُونَ ﴿٣٩﴾

او هغه څه چې ورکوئ یې تاسې له سود نه لپاره د دې چې زیات شي په مالونو د خلقو کې؛ پس نه زیاتیږي هغه په نزد د الله، او هر هغه څه چې ورکوئ یې تاسې له زکات څخه چې اراده لرئ

تاسې په هغه سره د لقاء او د ليدلو د مخ د الله؛ پس دغه (محض لله ورکوونکي) هم دوی دي زياتوونکي (د حسناتو خپلو).

**تفسير:** يعنې که څه هم په سود سره ظاهراً د مال زياتوالی ښکاري، ليکن په حقيقت کې هغه کميږي، لکه چې د کوم انسان بدن د پړسو ب لامله غټ او څورب ښکاري، نو دغه د صحت او روغتيا علامه نه ده، بلکه د رنځوری نښه او د مرګ پيغام دی، او د زکات له ورکولو څخه اګر که په ښکاره ډول سره داسې ښکاري چې د هغه مال کميږي؛ مګر هغه په حقيقت کې زياتيږي، لکه چې د کوم مريض بدن له مسهل او تنقيې څخه وروسته ضعيف او ناتوانه ښکاري، مګر بالآخره د ده صحّت ښه کيږي، د سود او زکات حال د انجام په اعتبار همداسې وګڼئ: ﴿يَمۡحَقُ ٱللَّهُ ٱلرِّبَوٰاْ وَيُرۡبِي ٱلصَّدَقَٰتِ﴾ (د البقرې سورت (۳۸) رکوع، (۲۷۶) آيت)، په حديث کې راغلي دي: «که د خُرما يوه دانه مؤمن په صدقه ورکړي؛ نو هغه د قيامت په ورځ دومره لوييږي چې د يوه غره په اندازه به لويه ښکاري».

ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَكُمۡ ثُمَّ رَزَقَكُمۡ ثُمَّ يُمِيتُكُمۡ ثُمَّ يُحۡيِيكُمۡۖ هَلۡ مِن شُرَكَآئِكُم مَّن يَفۡعَلُ مِن ذَٰلِكُم مِّن شَيۡءٖۚ سُبۡحَٰنَهُۥ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشۡرِكُونَ ۝٤٠

الله هغه ذات دی چې پيدا کړي يې يئ تاسې، بيا يې روزي درکړې ده تاسې ته، بيا مړه کوي، بيا ژوندي کوي تاسې (په بعث)، آيا شته له دغو شريکانو ستاسې داسې څوک چې کولی شي هغه له دغو (څلورو واړو کارونو) څخه کوم شی؟ (بلکه نشي کولی)، پاکي ده الله ته او ډېر لوی پورته دی شان د الله له دې نه چې شريک پيدا کوي دوی (له الله سره).

**تفسير:** يعنې وژل، ژوندي کول، روزي ورکول، نور ګرد شيان د الله تعالی په واک دي، نو بل شريک يې له کومه شو، او څرنګه د الوهيت مستحق وګرځېد؟.

ظَهَرَ ٱلۡفَسَادُ فِي ٱلۡبَرِّ وَٱلۡبَحۡرِ بِمَا كَسَبَتۡ أَيۡدِي ٱلنَّاسِ لِيُذِيقَهُم بَعۡضَ ٱلَّذِي عَمِلُواْ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُونَ ۝٤١

ظاهر شو (آثار د) فساد په بر او بحر (په وچه او لونده) کې په سبب د هغې (ګناه او شرک) چې کړي دي لاسونو د خلقو، لپاره د دې چې وڅکوي (الله) دوی ته څه (سزا) د هغو (عملونو) چې کړي دي دوی، لپاره د دې چې واوړي دوی (له دغو بديو نه).

**تفسير:** يعنې خلق د فطرت په دين قائم پاتې نشول، کفر او ظلم په دنيا کې خپور شو، او د هغو له شامته په ملکونو او جزايرو کې خرابي او فساد خور شو، نه په وچه کې امن او سکون پاتې شو، او نه په لونده کې، د ځمکې مخ فتنې او فساد ونيو، بحري جنګونه او د جهازونو جنګونو او داړه ماريو په سمندرونو کې هم لوی شورماشور او طوفان ونښلاوه، دغه ګرد د دې لامله چې الله تعالی اراده وکړه چې بندګان يې د خپلو بدو اعمالو لږ څه خوند په دنيا کې هم وڅکي، پوره سزا خو دوی ته په آخرت کې ورکوله کيږي، مګر د هغې لږه نمونه په همدغه دنيا کې دوی ته ورښوله کيږي، ممکن دي چې ځينې خلق وويريږي، او په سمه لاره روان شي.

قُلۡ سِيرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَٱنظُرُواْ كَيۡفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلُۚ كَانَ أَكۡثَرُهُم مُّشۡرِكِينَ ۝٤٢

ووايه (ای محمده ! مشرکانو ته) چې وګرځئ په ځمکه کې پس وګورئ څرنګه شوه خاتمه د هغو کسانو چې پخوا له دوی څخه وو، وو زياتره د دوی مشرکان (نو د خپل شرک په سبب هلاک شول).

تفسیر: یعنې د زیاترو شامت د شرک په وجه راغلی دی، او د ځینو نورو به د نورو ګناهونو له سببه راغلی وي.

فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ الْقَيِّمِ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا مَرَدَّ لَهُ مِنَ اللَّهِ يَوْمَئِذٍ يَصَّدَّعُونَ ﴿۴۳﴾

پس برابر کړه مخ (وجود) خپل سم دین ته پخوا له هغه چې راشي هغه ورځ چې نشته هیڅ بېرته ګرځېدل هغې (ورځې) ته له (جانبه د) الله، په دغه ورځ کې به تار په تار شي دغه مخلوق (چې ځینې به جنّت ته ځي او ځینې به دوزخ ته).

تفسیر: یعنې په دنیا کې خو فتنه او فساد خپور شوی دی، نو تاسې پر سم او معتدل دین چې د فطرت دین دی، په ښه شان سره قایم او ټینګ اوسئ! چې د ګردو خرابیو او مفاسدو علاج په همدغه دین سره دی، پخوا له هغه چې راشي هغه ورځ چې نشته هیڅ بېرته ګرځېدل هغې ته له جانبه د الله تعالی، یعنې د الله تعالی له طرفه د هغې راتلل قطعي او یقیني دي، او هیڅ یو قوت او طاقت د هغې مخه نشي نیولی، او نه به یې په خپله الله تعالی وځنډوي (تأخیر کړي)، په دغه ورځ کې به تار په تار شي دغه مخلوق، یعنې نېکان جنت او بدان دوزخ ته لیږي: ﴿فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ﴾ (د الشوری سورت (۱) رکوع، (۷) آیت (۲۵) جزء).

مَن كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ وَمَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِأَنفُسِهِمْ يَمْهَدُونَ ﴿۴۴﴾ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِن فَضْلِهِ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ﴿۴۵﴾

هر څوک چې کافر شو؛ پس په هغه ده (سزا) د کُفر د هغه، او هر څوک چې وکړي (نېک عمل)؛ پس خاص لپاره د ځانونو خپلو فرشونه غوړوي او په زړه پورې ساماني جوړوي. لپاره د دې چې جزاء ورکړي (الله) هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه) له فضله خپله څخه، بېشکه چې الله مینه محبت نه کوي له کافرانو سره.

تفسیر: یعنې هر څوک چې کافر شو؛ پس په هغه ده سزا د کفر د هغه چې د هغو ګناه او وبال به پرې لوېږي، او هر څوک چې وکړي نېک عمل؛ پس خاص لپاره د ځانونو خپلو فرشونه غوړوي او په زړه پورې ساماني جوړوي، یعنې په جنّت کې د دوی د ارامۍ او هوسایۍ (راحت) لپاره تیاری کیږي، او لپاره د دې چې جزاء ورکړي الله تعالی هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه عملونه له فضل خپل څخه، یعنې هومره چې ښه او نېک وي؛ هغه ته به هم یواځې د الله تعالی په فضل او مرحمت سره جنّت ور په برخه کیږي.

وَمِنْ آيَاتِهِ أَن يُرْسِلَ الرِّيَاحَ مُبَشِّرَاتٍ وَلِيُذِيقَكُم مِّن رَّحْمَتِهِ وَلِتَجْرِيَ الْفُلْكُ بِأَمْرِهِ وَلِتَبْتَغُوا مِن فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿۴۶﴾

او ځینې له ښنو د الله دا دي چې رالیږي بادونه زیری ورکوونکي او لپاره د دې چې وڅکوي په تاسې (په سبب د دغو بادونو) ځینې (مزې) د رحمت خپل، او بل لپاره د دې چې روانه شي پرې بېړۍ په امر حکم د الله، او لپاره د دې چې طلب کړئ (په چلولو د بېړۍ) له فضل د الله څخه، او لپاره د دې چې تاسې شُکر وباسئ (په دغو نعمتونو).

تفسیر: یعنې بادونه د رحمت د باران زېری او بشارت راوړي، بیا الله تعالی په خپل لطف او مهربانۍ سره باران وروي، او رالیږي بادونه لپاره د دې چې روانه شي پرې بېړۍ په حکم امر د الله تعالی سره، یعنې بادوان لرونکي جهازونه او بېړۍ په باد سره چلیږي او درومي، او دخاني جهازونو او استمرونو ته هم د موافق باد له الوتلو څخه په تګ کې کومک او

معاونت رسیږي، او لپاره د دې چې طلب کړئ تاسې په چلولو د بېړی له ځینې له فضل د الله تعالی څخه، او لپاره د دې چې تاسې شکر وباسئ په دغو نعمتونو، یعنې د جهازونو په ذریعه تجارتي اموال منتقل او وړل کیږي، او د الله تعالی په فضل او مرحمت سره ډېره ښه ګټه (فائده) ترې اخیستل کېدی شي، بیا د الله تعالی په دغو نعمتونو په ښه شان سره د ده شُکر اداء کړئ !.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا اِلٰى قَوْمِهِمْ فَجَآءُوْهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِيْنَ اَجْرَمُوْا ؕ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۷﴾

او خامخا په تحقیق لیږلي وو مونږ پخوا له تا (ای محمده ! نور) رسولان په طرف د قومونو د دوی ته، پس راغلل (دغه رسولان) دوی ته په معجزو ښکاره وو، پس بدل واخیست مونږ له هغو کسانو چې کافران شول (نو دوی مو هلاک کړل، او مؤمنانو ته مو نصرت ورکړ)، او دی حق (تفضّلاً) په مونږ نصرت د مؤمنانو.

تفسیر: یعنې پخوا یې ویلي وو، چې مقبول او مردود سره بېل کړی شي، په منکرانو د دوی د ګناه وبال او سزا لویږي، او پاک الله د دوی سره مینه نه کوي، اوس دا ښکاره کوي چې د دغې خبرې اظهار به په دنیا کې هم کیږي، دا د الله تعالی عادت او وعده ده چې له مکذبینو او مجرمینو څخه ضرور انتقام اخلي، او کامل مؤمنان په خپلې مرستې او اعانت سره په دښمنانو غالبوي، په منځ کې د باران ذکر څکه راغی؛ څرنګه چې د رحمت باران د نزول څخه پخوا بادونه چلیږي، همداسې د دین د غلبې علایم هم روښانه کیږي.

اَللّٰهُ الَّذِيْ يُرْسِلُ الرِّيٰحَ فَتُثِيْرُ سَحَابًا فَيَبْسُطُهٗ فِي السَّمَآءِ كَيْفَ يَشَآءُ وَيَجْعَلُهٗ كِسَفًا فَتَرَى الْوَدْقَ يَخْرُجُ مِنْ خِلٰلِهٖ ۚ فَاِذَآ اَصَابَ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اِذَا هُمْ يَسْتَبْشِرُوْنَ ﴿۴۸﴾

الله هغه ذات دی چې رالیږي بادونه پس پورته کوي (په هوا کې) وریځې، پس خوروي دغه (وریځې) په اسمان کې څرنګه چې اراده وکړي (الله)، او ګرځوي دغه (وریځې) ټوټې ټوټې لاندې باندې؛ پس وینې به ته (ای مخاطبه ! څاڅکي د) باران چې راوځي له منځه د دغې (وریځې)، پس کله چې ورسوي دغه باران هغه چا ته چې اراده وکړي (الله) له بندګانو خپلو؛ ناڅاپه دوی خوشالیږي پرې (او زړی پرې کوي).

تفسیر: یعنې الله تعالی وریځې اول یو لوري ته او وروسته بل لوري ته خپروي (خوروي) همداسې دین به هم منتشر او هر چېرې خپور (خور) کړي، لکه چې وېې هم کړل.

وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْهِمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمُبْلِسِيْنَ ﴿۴۹﴾

او بېشکه چې وو دوی پخوا له دې چې نازل کړی شوی وو په دوی (باران) پخوا له (ظهوره له) دې (وریځې او باران) خامخا نا امیده وو (له ورښت څخه یې).

تفسیر: یعنې پخوا له دې نه خلق ناامیده وو، تر دې چې د باران له راتګه لږ څه پخوا هم بیخي مایوس شوي وو، چې په دغه باران به دغه مړه ځمکه ژوندئ، څنګه د انسان حال ډېرعجیب او غریب دی، په لږ وخت کې ناامیده او خپه کیږي، بیا له لږ څخه وخت نه وروسته له ډېرې خوښۍ نه خاندي او خوشالیږي.

فَانْظُرْ اِلٰٓى اٰثٰرِ رَحْمَتِ اللّٰهِ كَيْفَ يُحْيِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا ۗ اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝۵۰

نو وګوره (ای مخاطبه) نښې د رحمت (باران) د الله ته چې څرنګه ژوندي کوي دی دغه ځمکه په باران (د وښو په زرغونولو سره) وروسته له مړوالي او وچوالي د هغې، بېشکه دغه (ژوندی کوونکی د ځمکې) خامخا ژوندی کوونکی د مړو هم دی، او هغه (الله) په هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځینې یې ژوندي کول او مړه کول دي).

تفسیر: یعنې څو ساعته پخوا له هر لوري خاورې او دوړې پورته کېدې، او ځمکه وچه، بې رونقه او مړه پرته وه، ناڅاپه د الله تعالی له مهرباني څخه ژوندی، شنه او زرغونه شوه، او دغه باران د ځمکې دغه پټ قوتونه څرنګه ویښ او راژوندي کړل، همدغه حال دې په روحاني باران هم قیاس کړ شي، چې له هغه څخه به په مړو زړونو کې نوی روح پیدا شي، او د الله تعالی دغه ځمکه د ﴿ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ﴾ له مرګ څخه وروسته به بیا ژوندی کیږي، له هر طرفه به د الله تعالی د رحمت نښې او د دین آثار څرګندیږي، هغه استعداد او قابلیت چې د مودو راپه دېخوا په خاورو کې موجود وو؛ د رحمت د باران په څاڅکو سره یې تر او تازه څرګنده او ښکاره کوي، لکه چې الله تعالی د محمدي بعثت په وسیله دغه جلوه دنیا ته راښکاره کړه.

﴿اِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى﴾ «بېشکه همدغه مُحیي الأرض خامخا ژوندی کوونکی د مړو هم دی، او همدغه الله تعالی په هر شي باندې چې اراده وکړي ښه قادر دی»، یعنې دلته به مړو زړونو ته روحاني ژوندون ورکړي، او د قیامت په ورځ به په مړو جسدونو کې بیا نوی روح اچوي، د الله تعالی د کامل قُدرت په مقابل کې هیڅ شی ګران او مشکل نه دی.

وَلَئِنْ اَرْسَلْنَا رِيْحًا فَرَاَوْهُ مُصْفَرًّا لَّظَلُّوْا مِنْۢ بَعْدِهٖ يَكْفُرُوْنَ ۝۵۱

او قسم دی که ولیږو مونږ باد (په شنه کښت ـ فصل)؛ پس وبهویني دوی دا کښت تک زیړ؛ نو خامخا وبه ګرځي دوی وروسته له دغه زیړوالي کافران (په تېرو نعمتونو ای محمده !).

تفسیر: یعنې ړومبی ناامیده وو کله چې باران وشو، او وچه کلکه ځمکه تړې تکه شنه، ژوندۍ او زرغونه شوه، او خلق تړې خوښ او خوشاله شول، اوس که مونږ له هغه وروسته یو سخت باد والوځوو چې د هغه په اثر د دوی ګرد کښتونه په شینوالي کې وچ کلک او تک زیړ وګرځي؛ نو سمدلاسه د دغو خلقو وضعیت بدلیږي، او د الله تعالی ګرد احسانونه هېروي، او په کفران او ناشکرۍ شروع کوي، لنډه دا چې د دوی شُکر ګزاري او ناشکري ټول د دنیوي اغراضو تابع دي، او دلته د دې په نسبت وایي: کله چې انسان د الله تعالی په فضل او احسان سره په خپل مقصد او مراد ورسېد؛ نو نه ښایي چې بې خوفه وګرځي، ځکه چې د ده قدرت راز راز (قسم قسم) څرګندیږي (ښکاره کیږي)، دا نه دي معلوم چې دغه درکړي نعمت کله در څخه بېرته واخلي؟

فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى وَلَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ اِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِيْنَ ۝۵۲ وَمَآ اَنْتَ بِهٰدِ الْعُمْيِ عَنْ ضَلٰلَتِهِمْ ۗ اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا فَهُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝۵۳

پس بېشکه ته نشې اورولې مړو ته (او دغه کفّار هم حکم د مړو لري)، او نشې اورولې ته کڼو ته غږ (د بللو) کله چې وګرځي دوی په داسې حال کې چې شا ګرځوونکي وي (تاته). او نه یې ته سمه لاره ښوونکی ړندو ته له ګمراهۍ د دوی، نشې اورولې ته (د پوهې او منلو په اورولو

سره) مګر هغه څاته چې ایمان یې راوړی وي په نښو او آیتونو څمونږ پس دوی مسلمانان غاړه ایښودونکي دي.

**تفسیر:** یعنې الله تعالی هر راز قُدرت لري، مړي ژوندي کولی شي، تاته د دغې خبرې قدرت نشته چې په مړو خپله خبره ومنلی شي، یا په کڼو خپله خبره واورولی شې، یا ړوندو ته سمه صافه لاره وښیې، خصوصًا کله چې دوی د اوریدلو او لیدلو اراده هم ونه لري، پس ته د دوی د دغه کُفر او ناشکری څخه مه غمجن کېږه ! ستا کار یواځې تبلیغ او دعوت دی، که کوم بدبخت یې نه اوري، یا یې نه مني؛ نو له دغه څخه تاته څه نقصان نه پیښیږي، ستا خبره همغه څوك اوریدی شي چې څمونږ په خبرو او ښکاره نښو یقین او باور لري، او د تسلیم او انقیاد په صفت موصوف وي.

ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَكُم مِّن ضَعْفٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعْدِ ضَعْفٍ قُوَّةً ثُمَّ جَعَلَ مِنۢ بَعْدِ قُوَّةٍ ضَعْفًا وَشَيْبَةً ۚ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ۖ وَهُوَ ٱلْعَلِيمُ ٱلْقَدِيرُ ﴿٥٤﴾

الله هغه ذات دی چې پیدا کړي یې یئ تاسې له کمزوري (شي څخه چې نطفه ده)، بیا یې درکړی دی وروسته له بل ضعف (د طفولیت) قوّت (د ځوانی)، بیا یې درکړی دی وروسته له قوّت (د ځلمیتوبه) ضعف او د ویښتو سپینوالی، پیدا کوي الله هر هغه شی چې اراده وکړي (د پیدایښت د هغه)، او همدغه (الله) ښه عالم دی ښه قادر دی (په هر شي).

**تفسیر:** یعنې کوچنی د پیدایښت په وخت کې بې حده کمزور او ناتوانه وي، بیا ورو ورو قوت مومي، تر دې چې د ځلمیتوب په وخت کې د ده زور او قوّت خپل انتهایي حد ته ورسیږي، او د ټول زور او قوت ترقي د ځلمیتوب په وخت کې وي، بیا ورو ورو عمر مخ په زوړوالي درومي، او له زور او قوّت نه وروسته د کمزوری آثار څرګندیږي، چې د هغې انتهایي حد سپین ګیرتوب او زوړوالی دی، په دغه وخت کې ګرد اعضاء سست او کمزوري کیږي، او په قوتونو کې فُتور او تعطیل واقع کیږي، د قوّت او ضعف دغه ګردې ترقې او تنّزل د پاك الله تعالی په لاس کې دي، هر قسم چې د الله تعالی اراده وي؛ هم هغسې یو شی جوړوي، او هغه د ضعف او قوّت له مختلفو ادوارو څخه تیروي، همدغه الله تعالی ته هر نوع قوت او قدرت حاصل دی، او همدغه الله تعالی ښه پوه او ښه عالم دی، چې کوم یو شی په کوم وخت کې او په کومو کومو حالاتو کې په څه ډول سره ښایي چې موجود وي؟.

نو په مونږ واجب او لازم دي چې د همدغه الله تعالی جلّ و أعلی شأنُه وأعظم برهانُه او د ده د رسولانو خبرې په ښه شان سره واورو.

وَيَوْمَ تَقُومُ ٱلسَّاعَةُ يُقْسِمُ ٱلْمُجْرِمُونَ مَا لَبِثُوا۟ غَيْرَ سَاعَةٍ ۚ

او په هغې ورځې کې چې قایم شي قیامت؛ نو قسمونه به خوري مجرمان (کافران په دې) چې نه دي پاتې شوي (په دنیا کې) غیر له یو ساعته.

**تفسیر:** یعنې په قبر یا په دنیا کې به هستوګنه ورته ډېره لږه ښکاري، څه وخت چې غم او مصیبت د ده په سر باندې ولویږي، او دی ورته ګوري؛ نو په ډېر افسوس او ارمان سره به وو ایي چې: د برزخ او د دنیا ژوندون ډېر ژر راباندې تېر شو، او لږ څه ډیل او مهلت را په برخه نشو، چې په هغه کې مو د دغه دردوونکي عذاب څخه د نجات لپاره څه سعي او کوښښ کړی وی، یا په دنیا کې لږ ډېره موده پاتې کیدو، څو د دغې ورځې لپاره مو څه تهیه او تیاري کړي وی، دغه مصیبت خو یو ناڅاپه راته پېښ شو.

كَذَٰلِكَ كَانُوا يُؤْفَكُونَ ﴿٥٥﴾

همدارنګه (چې دوی دروغ وايي په آخرت کې) وو دوی چې ګرځول کېدل به (له رښتيا نه په دنيا کې).

تفسير: يعني لکه چې هم هغلته د دوی داسې وېناوې به غلطې او دروغ وې، همداسې وپوهېږئ چې په دنيا کې به هم دغه خلق چټې او غلط خيالات او معکوسې او منقلبې خبرې او اترې به سره کوې.

وَقَالَ الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ وَالْإِيمَانَ لَقَدْ لَبِثْتُمْ فِي كِتَابِ اللَّهِ إِلَىٰ يَوْمِ الْبَعْثِ ۖ فَهَٰذَا يَوْمُ الْبَعْثِ وَلَٰكِنَّكُمْ كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ ﴿٥٦﴾

او وايي به دوی ته هغه کسان چې ورکړی شوی وو دوی ته علم او ايمان (يعنې انبياء، پرښتې، مؤمنان چې: ولې دروغ وايئ بلکه) خامخا په تحقيق ډېر پاتې شوي يئ (په دنيا کې چې هغه ليکلي دي) په کتاب د الله (لوح محفوظ) کې تر ورځې د بعث پورې، پس دغه ده ورځ د بعث (چې تاسې ترې منکران وئ) وليکن تاسې وئ تاسې په دنيا کې چې د جهل او غفلت لامله نه پوهېدئ (د دغې ورځې په وقوع).

تفسير: يعنې مؤمنان او پرښتې به په دغه وخت کې د دوی ترديد کوي، او دوی ته به داسې وايي چې: تاسې دروغ او خوشې چټې خبرې کوئ، يا په مغالطه کې لوېدلي يئ چې مونږ په برزخ يا په دنيا کې له يو (۱) ساعت څخه زيات نه يو پاتې شوي، تاسې د الله تعالى د علم او د ده د خبر او د لوح محفوظ د ليکنې سره سم د قيامت تر ورځې پورې په دنيا او په برزخ کې اوسيدلي يئ، چې د يوې شېبې په اندازه هم په هغه کې څه کمی نه دی واقع شوی، نن له هم هغې وعدې سره سم هغه ورځ رارسېدلې ده، اوس هغه وګورئ چې تاسې پرې نه پوهېدئ او نه مو منله، که له پخوا څخه مو په دغې ورځې يقين کړی وی، او له تيارئ سره ورته راغلي وی؛ نو د دغه ځای له لذتونو او مسرتونو څخه به محظوظ او متمتع شوي وی، او د دغو انعامونو او اکرامونو د ليدلو په مقابل کې به مو داسې ويل چې: دغه ورځ په ډېر څنډ او ډېل راغلې ده، او مونږ د دې د راتللو ډېر انتظار او اشتياق ويستلی دی، لکه چې مؤمنان يې همداسې ګڼي.

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يَنفَعُ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَعْذِرَتُهُمْ وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ ﴿٥٧﴾

پس دغې ورځې کې به نه رسوي ګټه هغو کسانو ته چې ظلم کړی دی دوی (په ځانونو خپلو په کفر سره) عذر د دوی، او نه به دوی وبللی شي راضي کولو د الله ته (يا به نه له دوی نه معذرت غوښتلی کيږي).

تفسير: يعنې نه به کوم معقول عذر وړاندې کولی شي، چې د دوی په کار ورشي، او نه به دوی ته داسې ويل کيږي: ښه ده، اوس د توبې او اطاعت په ذريعه د الله تعالى خوښې او رضا حاصله کړئ !، ځکه چې د هغو وخت تېر شوی دی، او اوس پرته له دې نه چې دايمي سزا وګالئ؛ بل هيڅ يوه چاره اومخلص نه دی پاتې.

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِي هَٰذَا الْقُرْآنِ مِن كُلِّ مَثَلٍ ۚ وَلَئِن جِئْتَهُم بِآيَةٍ لَّيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُبْطِلُونَ ﴿٥٨﴾

او خامخا په تحقيق بيان کړي دي مونږ لپاره د خلقو په دغه قرآن کې له هر قسم مثال (چې مفيد واقع کيږي دوی ته)، او (قسم دی ای محمده !) که راوړې ته دوی ته کوم آيت د قُدرت؛ نو

خامخا وبه وايي هرومرو هغه كسان چې كافران شوي دي (عنادًا) چې: نه يئ تاسو (ای محمده ! او مؤمنانو !) مگر (دروغجنان) باطل ويونكي.

**تفسير:** يعنې په دغه وخت كې به ډېر افسوس او ارمان كوي، مگر نن چې د الله تعالى د خوښې، رضاء او لقاء حاصلولو وخت او موقع ده، او عظيم الشأن قرآن دوی ته داسې عجيب مثالونه او دليلونه بيانوي، او راز راز خبرې ورته كوي، او په هره ممكنه طريقه سره يې په خپل خير او شر پوهوي؛ خو سره له هغه هم دوی په هغو باندې خپل ځان نه پوهوي، او نه د هغو هيڅ يو پند او خبره اوري، څومره مهم او عالي آيتونه چې دوی ته واوروئ يا ډېر لوی اوصاف او ځرگند معجزات ورښكاره كړئ؛ نو دوی د هغو په اورېدلو او ليدلو داسې وايي چې: تاسې رسول الله او مسلمين گردو لاسونه سره يو كړي دي، او دغه دروغ مو (العياذ بالله) له خپله ځانه جوړ كړي دي، يو تن مو څو آيتونه جوړوي او درلولي يې، او نور د هغه تصديق كوئ، يو جادو او كوډې كوي، او نور دغه ته تيار ولاړ دي چې په هغه ايمان راوړي، په دغه ډول مو گردو سره يو تړون كړی دی، او يوه اتحاديه مو سره جوړه كړې ده، او غواړئ چې په دغه چل سره خپل مذهب او مسلک خپور كړئ.

كَذَٰلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٥٩﴾

همدارنگه مهر لگوي الله په زړونو د هغو كسانو چې نه پوهېږي (او نه د پوهې غوښتنه كوي).

**تفسير:** يعنې هغه انسان چې نه پوهېږي، او نه د پوهېدلو لپاره زيار او كوښښ كوي، او د ضد او عناد له سببه خامخا د هرې خبرې ترديد او انكار ته هم تيار ولاړ وي؛ نو د دغه وضعيت دوام ورو ورو په تدريجي توگه د ده زړه كلكوي، او د شرک، شک، ترديد او انكار مهر پرې لگوي، او بالآخر د ډېر ضد او عناد له سببه د ده زړه دومره سخت شي، چې د حق د منلو قوت او استعداد په كې بيخي پاتې نشي (العياذ بالله).

فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ ۖ وَلَا يَسْتَخِفَّنَّكَ الَّذِينَ لَا يُوقِنُونَ ﴿٦٠﴾

پس صبر كوه (ای محمده ! په ضرر د دوی) بېشكه چې وعده (د نصرت) د الله حقه ده، او بې همته نه كړي تا لره هغه كسان چې يقين نه راوړي (په آخرت) !.

**تفسير:** يعنې كله چې د دغو بدبختانو د ضد، عناد، او تكرار احوال او مقدار تر دغو درجو پورې ورسېدل؛ نو ته د دوی له دغه شرارت، بغاوت، او طغيان څخه مه خپه كېږه ! بلكه د پېغمبرۍ په صبر، تحمل او حلم سره ورنه تېرېږه ! او په خپل دعوت، تبليغ، پند او نصيحت كې مشغول او لگيا اوسه، هغه د فتحې او نصرت وعده چې له تا سره رب العزّت كړې ده، هغه په يقيني ډول كامله او پوره كېدونكې ده، او په هغه كې د يوې ذرې په اندازه هم څه تفاوت او تخلف واقع كېدی نشي، ته په خپل كار تل ټينگ اوسه ! دغه بد عقيده او بې يقينه خلق د يوې ذرې په اندازه هم تا له خپله ځايه نشي خوځولی.

تمت سورة الروم بعون الله الحي القيوم، فله الحمدُ والمنة أولا وآخرا وظاهرا وباطنا.



# سُورَةُ لُقْمَانَ

«د لقمان سورت مکي دی پرته له (۲۷، ۲۸، ۲۹) آيتونو نه چې مدني دي، (۳۴) آيتونه او (۴) رکوع لري، په تلاوت کې (۳۱) او په نزول کي (۵۷) سورت دی، وروسته د الصافات له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

الٓمّٓ ﴿۱﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ﴿۲﴾ هُدًى وَّرَحْمَةً لِّلْمُحْسِنِيْنَ ﴿۳﴾ الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ ﴿۴﴾ اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۵﴾

دا آيتونه د کتاب حکمت لرونکي (محکم قرآن) دي. په داسې حال کې چې هدايت او رحمت دی لپاره د نېکو کارانو. هغه کسان چې قائموي (سم اداء کوي سره له ټولو حقوقو) لمونځ او ورکوي دوی (واجب) زکات، او دوی په آخرت باندې همدوی يقين کوي (چې خامخا راځي په حقه سره). دغه (ستايلي شوي کسان) په سمه لاره دي له (طرفه) د رب د دوی، او دغه (کسان) هم دوی په مراد رسيدلي دي.

تفسير: دغه کتاب خاص د نېکانو لپاره د رحمت او هدايت پانګه ده، ځکه چې همدغه خلق ورنه ګټه اخلي، که نه نو په نفس نصيحت او پوهولو کې ذکر د جن او انس په حق کې ښکاره هدايت او رحمت دی، د «سورة البقرة» په اوله رکوع کې همداسې نور آيتونه هم تير شوي دي، او د ﴿هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ﴾ دوه ترجمې شوي دي، دلته دې هم هغه بيا وکتل شي !.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ لِيُضِلَّ عَنْ سَبِيْلِ اللهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۖ وَّيَتَّخِذَهَا هُزُوًا ۗ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۶﴾

او (ځيني) له خلقو څخه هغه څوک دي چې اخلي عبثې خبرې لپاره د دې چې وښويوي (خلق) له لارې د الله نه بې له علمه (په عاقبت د فعل خپل)، او چې ونيسي دا (لاره يا آيتونه) په ټوکو مسخرو، دغه (کسان) شته دوی ته عذاب سپکوونکی.

تفسير: د مفلحينو نېکبختانو په مقابل کې دلته د هغو بدبختانو ذکر دی، چې د خپل جهالت او ناداني او آخرې خاتمې، ته د نه کتلو له امله يې قرآنکريم پرې اينبی، په لوبو، لهوو، لعبو يا په نورو واهياتو او خرافاتو کې مستغرق دی، غواړي، چې نور هم په همداسې مشغوليتونو او ساعت تيريو کې مشغول او لګيا او د الله تعالی له دين او ياد څخه غافل او بې پروا کړي، او د الله تعالی ياد ترې هېر کړي، او په ديني خبرو پورې خاندي او پرې مسخرې او ملنډې وهي، حسن بصري رضي الله تعالی عنه د «لهو الحديث» په متعلق وايي: «هر هغه شی چې د الله تعالی له عبادت او له ياد څخه لرې کوونکی وي؛ مثلاً فضولې قصې ويل، چټي د خندا او ټوکو خبرې، چټي کارونه، ساز او سرود او نور».

په روايتونو کې راغلي دي چې «نضر بن حارث» چې د کفارو له مشرانو څخه وو، کله چې به د تجارت لپاره پارس ته تلو؛ نو له هغه ځای به يې د عجمو باچايانو قصې او د تواريخو کتابونه له خپله ځانه سره راوړل، او قُريشو ته

به یې ویل چې: محمد صلی الله علیه وسلم تاسې ته د عاد او ثمود قصې اوروي، راځئ چې زه به تاسې ته د رُستم او د اسفندیـار او د آریانا د باچایانو قصې واوروم، ځینو خلقو هغه قصې ښې او په زړه پورې ګڼلې، او ورته به متوجه کېدل، هغه یوه سندرغاړې وینځه هم پیرودلې وه، کله چې ده لیدل چې د کوم سړي زړه نرم او اسلام ته لږ څه متمایل شوی دی؛ نو هغه به یې د هغې سندرغاړې کره لېږه، او ورته ویل به یې چې: دغه ته ښه ډوډۍ او د څښلو شیان ورکوه، او ښې بدلې ورته اوروه !، بیا به یې دغه سړي ته ویل چې: ګوره دغه مېلې او چړچې له هغه څخه ډېرې ښې او بهترې دي چې محمد صلی الله علیه وسلم دې هغه لوري ته بولي، چې لمونځ کوه ! روژې نیسه ! ځان دې په شهادت ورسوه ! نو په دغه باندې دا آیتونه نازل شول.

**تنبیه:** ددغه آیت شان نزول اګر که خاص دی، مګر د الفاظو د عمومیت له وجې یې حکم عام دی، هغه لهو چې داسلامي دین څنې د خلقو اړوونکی وي، یا د اړولو له موجباتو څخه وي؛ ممنوع او حرام بلکه کُفر دی، او هغه شیان چې د ضروري شرعي احکامو څخه انسان ستنوي (منع کوي) یا د معصیت سبب ګرځي؛ ګناه او معصیت دی، هو ! هغه لهو چې د کوم واجب امر مانع نه وي، او کوم شرعي غرض او مصلحت په هغه کې نه وي؛ هغه مباح دی، لیکن د لایعني والي له سببه خلاف الأولیٰ دی، آس ځغلول، غشي اونورې ښې ویشتل یا د زوجینو ملاعبت چې په شرعي حدودو کې وي؛ څرنګه چې په معتد به شرعي اغراضو او مصالحو مشتمل دي؛ نو ځکه د باطل لهو څخه مستثنی ګرځول شوي شوي.

وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِ آيَاتُنَا وَلَّىٰ مُسْتَكْبِرًا كَأَن لَّمْ يَسْمَعْهَا كَأَنَّ فِي أُذُنَيْهِ وَقْرًا ۖ فَبَشِّرْهُ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ⑦

او کله چې ولوستل شي په ده باندې آیتونه (د قرآن) زمونږ؛ نو وګرځوي تری مخ حال دا چې متکبّر غاړه غړوونکی وي داسې چې ګواکې له سره یې نه دي اورېدلې، ګواکې په دواړو غوږونو د ده کې دروندوالی، کوڼوالی دی، پس زېری، خبر ورکړه ته هغه ته په عذاب دردناک سره.

**تفسیر:** یعنې د غرور او تکبّر له سببه نه غواړي چې زمونږ آیتونه واوري، بلکه د هغه په مقابل کې بیخي ځان کوڼ اچوي.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ ⑧ خَالِدِينَ فِيهَا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ⑨

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ شته دوی لره جنّتونه د نعمتونو. حال دا چې تل به وي دوی په دغو (جنتونو) کې، (دغه وعده کړې ده) وعده د الله حقه رښتیا، او همدی دی ښه غالب قوي (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت لرونکی (چې هر کار په تدبیر او مصلحت سره کوي).

**تفسیر:** یعنې هیڅ یو قوّت دی د وعدې له سر ته رسولو څخه نشي ستنولی، او نه له چا سره بې موقعه وعده کوي.

خَلَقَ السَّمَاوَاتِ بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا

پیدا کړي دي (الله) اسمانونه بې له ستنو چې وینئ تاسې هغه.

**تفسیر:** د دغه (عمد) د لفظ تفسیر د «الرعد» د سورت په اوله کې تېر شو، هلته دې وکتل شي.

وَأَلْقَىٰ فِي الْأَرْضِ رَوَاسِيَ أَن تَمِيدَ بِكُمْ

او ایښي (پیدا کړي یې دي) په ځمکه کې غرونه لپاره د دې چې ونه خوځیږي دا ځمکه پر تاسې.

تفسیر: یعنې د ځمکې د انتظام او استقرار لپاره خورا لوی او درانه غرونه پرې درولی شوي دي، چې د سمندر له موجونو یا د سختې هوا له جټکو یا د نورو طبیعیه اسبابو له اثره ونه لړزیږي، او یوې خوا ته مائله نشي، د «نحل» په اوله کې دغه مضمون ښخوا له دې نه تېر شوی دی، باقي د غرونو د پیدا کېدلو مصلحت یواځې پر هم دغومره حکمت محدود او منحصر نه دی، نور داسې ډېر فوائد او حکمتونه هم په کې مضمر او موجود دي، چې هغه ګرد پاک الله ته معلوم او ښکاره دي.

وَبَثَّ فِيهَا مِن كُلِّ دَآبَّةٍ وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً فَأَنۢبَتْنَا فِيهَا مِن كُلِّ زَوْجٍ كَرِيمٍ ⑩

او ویې شیندل (خواره واره یې کړل) په دغه ځمکه کې له هر قسم خوځېدونکو ساکښو (ژوندیو) څخه، او نازلې کړي دي مونږ له (طرفه) د اسمانه اوبه؛ پس زرغونې کړي دي مونږ په دغه (ځمکه) کې له هر هر قسمه ګیاه ښې (خاصې جوړې).

تفسیر: یعنې هر قسم ښایسته، ښکلې، ګټور، او نفیسې ونې یې په ځمکه کې زرغونې کړي دي، د «الشعراء» د سورت په شروع کې په همدغه مضمون یو بل آیت هم تېر شوی دی، هلته دې وکتل شي !.

هَٰذَا خَلْقُ اللَّهِ فَأَرُونِي مَاذَا خَلَقَ الَّذِينَ مِن دُونِهِۦ ۚ بَلِ الظَّٰلِمُونَ فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ⑪

دغه (ټول مذکوره شیان) مخلوق د الله تعالی دي، پس وښیئ (ای مشرکانو !) ماته هغه شی چې پیدا کړی دی هغو معبودانو بې له الله نه، بلکه دغه ظالمان مشرکان په ګمراهۍ ښکاره کې دي.

تفسیر: کله چې د هغو مخلوق نشئ راښوولی؛ نو په کوم مخ او خوله هغوی د الله تعالی شریکان ګرځوئ؟ او د معبودیت وړ او مستحق یې بولئ؟ معبود خو داسې یو جامع الصّفات ذات کېدی شي، چې د هغه په واک او قدرت کې پیدا کول، وژل، روزي رسول او نور ګرد شیان وي، مګر دلته دوی د پیدا کولو او د نورو افعالو یوه ذره اختیار هم نه لري، مګر دغه ظالمان د فکر، ذکر، غور او دقّت سره هیڅ علاقه او ارتباط نه لري، په توره تیاره کې پراته دي، او حیران او سرګردانه ګرځي.

وَلَقَدْ ءَاتَيْنَا لُقْمَٰنَ الْحِكْمَةَ أَنِ اشْكُرْ لِلَّهِ ۚ وَمَن يَشْكُرْ فَإِنَّمَا يَشْكُرُ لِنَفْسِهِۦ ۖ وَمَن كَفَرَ فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ⑫

او خامخا په تحقیق ورکړی وو مونږ لقمان ته حکمت (عقل، علم او ویلي وو مونږ ده ته) چې شکر کوه الله ته، او هر چا چې شکر وکړ؛ پس بېشکه همدا خبره ده چې شکر کوي لپاره (د ښېګڼې) د ځان خپل، او هر څوک چې کافر شو؛ پس بېشکه الله غني ډېر بې پروا د ګردو محامدو څښتن دی.

تفسیر: د زیاترو علماوو رایه داسې ده چې: لُقمان علیه السلام نبي نه وو، هو ! یو پاک او متقي انسان وو، چې الله تعالی ورته اعلی درجه عقل، فهم، متانت او پوهه ورکړې وه، د ده د عقل او پوهې نصایح او د حکمت خبرې په خلقو کې له قدیم الأیامه معروفې او مشهورې وې، رب العزّت د هغو یوه برخه په خپل عظیم الشأن قرآن کې هم نقلوي، او د ده مرتبه لازیاتوي، ښایي له دې نه مطلب دا وي چې د شرک، کفر او عصیان قباحت هم هغسې چې د انساني فطرت په شهادت او د انبیاء الله له وحي ثابت دی؛ د دنیا د غورو او منتخبو عاقلانو او فاضلانو مفکوره او مقوله هم د هغه تأیید

او تصديق كوي، پس كفّار ولې د توحيد څخه بېزاره او كفر او شرك يې ځان ته غوره كړې دی؟ او د دوی دغه وضعيت كه ښكاره ګمراهي نه ده نو بل څه شی دی؟.

﴿وَمَن يَشۡكُرۡ فَإِنَّمَا يَشۡكُرُ لِنَفۡسِهِۦ﴾ يعنې پر دغه لوی احسان او نورو احساناتو ښايي چې د حقيقي منعم شكر اداء او د ده حق پېژندل ضروري وګڼل شي، ليكن دغه خبره دې واضحه وي چې د دغه حق پېژندلو او شكر ايستلو څخه الله تعالی ته هيڅ يوه فائده نه رسيږي، هو ! هغومره ګټه او نفعه چې رسيږي؛ پخپله همدغه شاكر ته رسيږي، چې په دنيا كې ډېر انعام او اكرام، او په آخرت كې اجر، ثواب او ښه مقام يې ور په برخه كيږي.

كه دوی ناشكري او كُفران كوي؛ نو خپل ځان ته تاوان رسوي، الله تعالی داسې شكر ګزاريو ته هيڅ ضرورت او احتياج نه لري، د الله تعالی په حمد او ثناء كې د دنيا ټول مخلوقات د حال په ژبه مشغول او لګيا دي، او په فرض محال كه كوم حامد او ثنا ويونكی له سره هم نه وي؛ خو بيا هم پاك الله د خپل جامع الصفات او منبع الكمالات والي په بناء پخپله محمود دی، او د چا د حمد او شكر كولو يا نه كولو څخه د ده په كمالاتو كې د يوې ذرې په اندازه هم څه زياتی او كمی نه پيښيږي.

﴿وَإِذۡ قَالَ لُقۡمَٰنُ لِٱبۡنِهِۦ وَهُوَ يَعِظُهُۥ يَٰبُنَيَّ لَا تُشۡرِكۡ بِٱللَّهِۖ إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٞ﴾ ١٣

او ياد كړه (ای محمده ! هغه وخت) چې وويل لقمان ځوی خپل ته حال دا چې ده پند وركاوه ده ته: ای بچوړيه ځما ! شريك مه ګرځوه له الله سره، بېشكه چې شرك خامخا ظلم دی ډېر لوی.

تفسير: له دې نه به بله بې انصافي څه وي چې عاجز مخلوق ته د مختار خالق درجه وركړې شي؟ او له دې نه به زيات حماقت او ظلم په خپل ځان بل څه وي چې له أشرف المخلوقات والي سره سره د ډېرو خسيسو او سپكو شيانو په مقابل كې د خپل عُبوديت سر ښكته كړي؟ لا حول ولا قوة إلا بالله العلي العظيم.

﴿وَوَصَّيۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيۡهِ حَمَلَتۡهُ أُمُّهُۥ وَهۡنًا عَلَىٰ وَهۡنٖ وَفِصَٰلُهُۥ فِي عَامَيۡنِ أَنِ ٱشۡكُرۡ لِي وَلِوَٰلِدَيۡكَ إِلَيَّ ٱلۡمَصِيرُ﴾ ١٤

او وصيت، امر كړی دی مونږ انسان ته له مور او پلار خپل سره (په نېكۍ كولو، ځكه چې په نس كې) ګرځاوه ده لره مور د ده په سستۍ سره له پاسه د بلې سستۍ، او بېلول د ده دي (له تي نه) په (پوره كېدلو د) دوو كلونو كې، (او ورته ويلي دي مونږ داسې) چې شكر كوه ماته او مور پلار خپل ته ! خاص بيا ماته دي راتله (ستاسو ای انسانانو !).

تفسير: يعنې د مور حق له پلار نه هم زيات دی، ځكه چې مور تر څو مياشتو پورې دې په خپله ګېډه كې ګرځوي، بيا د حمل له وضعې نه وروسته تر دوو كلونو پورې تی ورته وركوي، او د ده د تربيې او پاللو په ضمن كې راز راز تكاليف او ربړونه ګالي، او زحمتونه او تكاليف په ځان اخلي، او خپله آرامي او هوسايي ترې جاروي، نو ضروري ده چې هر انسان ړومبی د الله تعالی او بيا د خپل مور او پلار حقوق په مخصوص ډول سره وپېژني، او په ځای يې كړي، يعنې د الله تعالی عبادت وكړئ ! او د مور او پلار په خدمت او اطاعت كې له توان سره سم بوخت اوسئ ! او له سره ترې غاړه مه غړوئ ! خو تر هغې پورې چې د الله تعالی معصيت ته مفضي نشي، ځكه چې د الله تعالی حق په دوی مقدم دی، او د ده په حضور كې تاسې او دوی ګرد سره حاضرېږئ، نو ښايي چې انسان دې په خپل زړه كې ښه فكر او غور وكړي، چې په كوم مخ او خوله به دی له پاك الله سره مخامخ كيږي.

وَاِنْ جٰهَدٰكَ عَلٰۤى اَنْ تُشْرِكَ بِیْ مَا لَیْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِی الدُّنْیَا مَعْرُوْفًا٘ وَّاتَّبِعْ سَبِیْلَ مَنْ اَنَابَ اِلَیَّۚ

او که کوښښ وکړي دا مور او پلار په تا په دې چې شریک کړې ته له ما سره هغه شی چې نه وي تاته په هغه سره څه علم پوهه؛ نو اطاعت مه کوه د دې دواړو، او ملګرتیا کوه له دوی سره په دنیا کې ښه غوره (ملګرتیا له شرعې سره سمه)، او متابعت کوه په دین کې د لارې د هغه چا چې بېرته راګرځیدلي دي ماته (په توحید سره).

تفسیر: د دین په خلاف د مور او پلار وینا مه منه ! هو ! په دنیوي معاملاتو کې له هغوی سره نېکي او ښه سلوک کوه ! په همدغه مضمون یو بل آیت هم د «العنکبوت» په سورت کې تېر شوی دی، د هغه تفسیر دې هلته ولوستل شي ! د انبیاوو او مخلصو بندګانو په لاره درومه ! او د دین په خلاف د خپل مور او پلار تقلید او اطاعت مه کوه !.

ثُمَّ اِلَیَّ مَرْجِعُكُمْ فَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ۝۱۵

بیا (خاص) ماته راتله ستاسې دي (د ټولو په قیامت کې د حساب لپاره)، پس خبر به کړم زه تاسې په هغو عملونو چې وئ تاسې چې کول به تاسې (په دنیا کې له خیر او شر نه).

تفسیر: یعنې وروسته له دې نه چې د الله تعالی دربار ته ورسېږئ؛ نو اولاد او والدینو او نورو ګردو ته به دغه خبره معلومه او څرګنده شي چې کوم یو متجاوز او مقصر وو؟.

تنبیه: له ﴿وَوَصَّیْنَا الْاِنْسَانَ﴾ څخه تر دې ځای پورې د الله تعالی کلام دی، ړومبی خپل ځوی ته د لقمان وصیت وو، او وروسته هم له ﴿یٰبُنَیَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ﴾ څخه د همدغه وصیت سلسله ده، په منځ کې الله تعالی له خپلې خوا یو ضروري تنبیه وکړه، یعنې شرک دومره سخت او قبیح شی دی، تر دې چې که مور او پلار خپل اولاد پرې مجبور کړي؛ خو بیا یې هم څوک نشي غوره کولی.

یٰبُنَیَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِیْ صَخْرَةٍ اَوْ فِی السَّمٰوٰتِ اَوْ فِی الْاَرْضِ یَاْتِ بِهَا اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِیْفٌ خَبِیْرٌ۝۱۶

ای ځوی ګوټیه ځما ! بېشکه دا (د بدئ او نېکی خصلت) که کوم شی وي په قدر د داني له اوري څخه، پس وی دا دانه په کومې تیږې (ګټې) کې یا وی په اسمانونو کې یا په ځمکې کې (چې هیڅوک پرې خبر نه وی)؛ نو رابه یې وړي الله (حساب کتاب ته)، بېشکه الله ښه باریک لیدونکی ښه خبردار دی.

تفسیر: یعنې کوم شی یا کوم خصلت ښه وي یا بد، که د اوري په اندازه وړوکی هم وي، او فرض یې کړئ چې په کومې لوی غټې تیږې کې یا د اسمانونو له پاسه یا د ځمکې په تیارو کې اینبودل شوی وي؛ هغه هم له الله تعالی څخه پټ نشي پاتې کېدی، هر کله چې وخت راشي؛ هغه به له هم هغه ځایه هر چېرې چې اراده وکړي راحاضر کړي، نو ځکه هر انسان ته لازمه او ضروري ده چې دغه خبرې دې تر نظر لاندې ونیسي، هر هغه کار چې په زړهاوو پردو کې دننه هم وشي، هغه الله تعالی ته حاضر او دی ورته ناظر دی، لکه چې نیکي یا بدي چې په هر څومره پټ ځای کې وکړی شي؛ د هغې اثر ضرور څرګندېدونکی دی، او اهل النظر هغه بې تکلّفه محسوسولی شي.

يٰبُنَيَّ اَقِمِ الصَّلٰوةَ وَاْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ

ای ځوی ګوتیه ځما ! قائموه (سم ودروه سره له ټولو حقوقو) لمونځ او امر کوه (خلقو ته) په نېکۍ او منع کوه خلق له بدۍ نه.

تفسير: يعنې ته پخپله هم د الله تعالی پر توحيد او بندګۍ قايم اوسه ! او هم نورو ته نصيحت کوه، چې ښې خبرې زده کړي، او له بدو او خرابو خبرو څخه ځان وساتي !.

وَاصْبِرْ عَلٰى مَآ اَصَابَكَ ؕ اِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴿۱۷﴾

او صبر کوه په هغې سختۍ چې رسيږي تاته (بالخاصه په امر او نهي کې)، بېشکه دغه (مذکوره نصائح) له مهمو مقصودي کارونو څخه دي.

تفسير: يعنې په دنيا کې هر هغه سختي، کړاوونه، او تکليفونه چې درپېښيږي، چې هغه اغلبًا د امر بالمعروف او نهی عن المنکر په سلسله کې وي؛ نو هغه په تحمّل او اولوالعزمۍ سره په ځان وګاله، او له سختيو څخه له سره مه ويرېږه ! ځکه چې له دغو شيانو څخه د کلمة الله د اعلاء په مقابل کې ويرېدل د زړورو او د عزم د خاوندانو کار نه دی.

وَلَا تُصَعِّرْ خَدَّكَ لِلنَّاسِ

او مه ګرځوه مخ خپل خلقو ته (له ډېره کبره، بلکه ګوره دوی ته په تواضع سره).

تفسير: يعنې په تکبر او غرور سره مه ګوره ! خلق خوار، سپک او حقير مه ګڼه ! د متکبرانو په شان خبرې اترې مه کوه ! بلکه په روڼ تندي، او په خندا، خوښي او خوشالي له خلقو سره غږېږه !.

وَلَا تَمْشِ فِى الْاَرْضِ مَرَحًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُوْرٍ ﴿۱۸﴾

او مه کوه تګ په ځمکه کې په ناز او نخرو ! بېشکه الله محبت نه کوي هر کبر کوونکي فخر کوونکي سره (په خلقو).

تفسير: يعنې په غرور، تکبر، لويي او لاپو د سړي څه قدر او عزت نه زياتيږي، بلکه د دې په عکس ذليل، حقير او سپک ښکاري، که څوک مخامخ ورته څه ونه وايي؛ پسې شا خو خلق ورپسې ډېر بد وايي، او سپک يې ګڼي.

وَاقْصِدْ فِىْ مَشْيِكَ وَاغْضُضْ مِنْ صَوْتِكَ ؕ اِنَّ اَنْكَرَ الْاَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيْرِ ﴿۱۹﴾

او ميانه رو اوسه ! په تګ خپل کې (يعنې مه ډېر ګړندی اومه ډېر ورو ځه)، او ورو کړه غږ خپل، بېشکه چې ډېر بد د ټولو غږونو خامخا غږ د خرو دی.

تفسير: يعنې تواضع، متانت، اعتدال او متوسط وضعيت ځان ته غوره او اختيار کړه، بې له ضرورت نه خبرې مه کوه ! د خبرو په وخت کې بې له ضرورت نه چغې مه وهه ! که په لوړ غږ سره غږېدل څه کمال وی؛ نو د خره غږ ته به خلقو ډېر اهميت ورکاوه، حال دا چې څه وخت چې خر هنګيږي؛ هغه په غوږونو ډېر کريهه او بد لګيږي، ډېر ځله د انسان په زوره غږېدلو کې هم داسې بې نظمي او بې ترتيبي پيښيږي.

اَلَمْ تَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ وَاَسْبَغَ عَلَيْكُمْ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّبَاطِنَةً ؕ

آیا نه وینئ تاسې (ای انسانانو !) چې بېشکه الله مسخر کړي په کار اچولي دي تاسې ته هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، او پوره کړي دي (الله) په تاسې نعمتونه خپل (هم) په ښکاره او (هم) په پټه.

تفسیر: یعني د اسمان او ځمکې ګرد مخلوقات ستاسې په کارونو کې لګیا دي، نو بیا تاسې ولې د هغه په کار نه لګیا کېږئ؟ او پوره کړي دي الله په تاسې نعمتونه خپل هم ښکاره هم په پټه، ښکاره نعمتونه هغه دي چې په حواسو سره یې ادارک کیږي، یا بلا تکلفه په فهم او پوهه کې راتلای شي، پټ نعمتونه هغه دي چې په عقل، فکر، غور او دقّت سره موندل کیږي، یا به له ظاهري ځنې مادي او معاشي او له باطني ځنې روحاني او معادي نعمتونه مراد وي، ګواکې د رسول ارسال، د کتاب نازلول، د نېکۍ توفیق ورکول؛ ګرد په باطني نعمتونو کې شامل دي.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّجَادِلُ فِي اللّٰهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّلَا هُدًى وَّلَا كِتٰبٍ مُّنِيْرٍ ﴿٢٠﴾

او (ځینې) له خلقو هغه څوک دي چې جګړه کوي په (حق د) الله کې بې له پوهې (د توحید څخه) او بې له (لارې د) هدایت، او بې له کتاب روښان څخه.

تفسیر: یعني له داسې ظاهرو او باهرو نعمتونو او احسانونو سره سره ځینې خلق خپلې سترګې پټوي، د الله تعالی په وحدانیت کې یا د ده په شیونو او صفاتو کې یا په احکامو او شرائعو کې مباحثې او جګړې کوي، او تش په بې سندو جګړو کې سره نښلي، نه کوم علمي او عقلي اصول له هغوی سره شته، او نه د کوم بر حق هادي څه هدایت، او نه د کوم مستند او روښان کتاب حواله له خپله ځانه سره لري، تش د خپلو پلرونو او نیکونو ړوند تقلید له هغوی سره شته، چې ذکر یې په راتلونکي آیت کې راځي.

وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ اتَّبِعُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ قَالُوْا بَلْ نَتَّبِعُ مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ الشَّيْطٰنُ يَدْعُوْهُمْ اِلٰى عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿٢١﴾

او کله چې وویل شي دوی ته چې متابعت وکړئ په صدق سره د هغه (قرآن) چې نازل کړی دی الله؛ نو وایي دوی: نه ! بلکه متابعت کوو د هغه شي چې موندلي وو مونږ په هغه شي پلرونه خپل، (نو وایي الله) آیا (متابعت کوي دوی د پلرونو) اګر که وي شیطان داسې چې بولي دوی (یا پلرونه د دوی) په طرف د عذاب د دوزخ (بلکه متابعت دې نه کوي !).

تفسیر: یعني که شیطان ستاسې پلرونه او نیکونه د دوزخ په طرف بیولي وي، بیا هم تاسې په هم هغو پسې درومئ؟ او په کوم ځای کې چې هغوی لویدلي دي؛ تاسې هم خپل ځانونه هم هغلته غورځوئ؟.

وَمَنْ يُّسْلِمْ وَجْهَهٗٓ اِلَى اللّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقٰى ؕ

او هر څوک چې وسپاري (تابع کړي) مخ (ځان) خپل الله ته (او پرې تفویض او توکّل وکړي) حال دا چې دی نیکوکار وي؛ نو په تحقیق ده منګولې خښې کړي دي په کړۍ مضبوطې باندې.

تفسیر: یعني هر هغه چا چې په اخلاص سره د نېکۍ لاره غوره او اختیار کړه، او خپل ځان یې الله تعالی ته وسپاره؛ نو وپوهېږه چې خپل لاس یې په ډېرې مضبوطې او کلکې کړۍ لګولی دی، او ځان یې پرې ټینګ کړی دی، تر هغه وخته پورې چې ده دغه کړۍ ټینګه نیولې وي؛ نو له سره نه ښایي چې د لوېدو کومه اندېښنه ورته پیدا شي.

وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴿۲۲﴾

او خاص الله ته دی عاقبت خاتمه د (ټولو) کارونو.

تفسیر: یعنې هر هغه چې دغه کړۍ مضبوطه ونیوله؛ بالآخره د همدغې کړۍ او سند په وسیله د الله تعالی دربار او دیدار ته رسیږي، او پاک الله د ده آخره خاتمه او انجام ښه کوي.

وَمَنْ كَفَرَ فَلَا يَحْزُنْكَ كُفْرُهُ ۚ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ فَنُنَبِّئُهُمْ بِمَا عَمِلُوا ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿۲۳﴾

او هر څوک چې کافر شو؛ پس نه دې خپه کوي تا (ای محمده !) کُفر د ده (ځکه چې) خاص مونږ ته دي بیا راتله د دوی په قیامت کې، پس خبر به کړو مونږ دوی په هغو اعمالو چې کړي یې دي، بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغو خبرو چې په سینو (د دوی) کې دي.

تفسیر: یعنې تاسې خپله علاقه له پاک الله سره ټینګه او مضبوطه ولرئ ! د هیچا د تکذیب او انکار پروا له سره مه کوئ ! د منکرینو بېرته راتګ او رجوع خامخا ځمونږ په لوري ده، په دغه وخت کې به د دوی ټولو عملونه بې له کموالي او زیاتوالي د دوی په مخ کې ایښودل کیږي، او هیڅوک به خپل هیڅ یو جرم له پاک الله څخه نشي پټولی، ځکه چې الله تعالی د زړونو په پټو خبرو او مخفي اعمالو هم خبر دی، او هغه ګرد به دوی ته ور وړاندې کړي.

نُمَتِّعُهُمْ قَلِيلًا ثُمَّ نَضْطَرُّهُمْ إِلَىٰ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿۲۴﴾

نفع به ور کړو مونږ دوی ته (په دنیا کې) لږ شانې، بیا راولو دوی په ډېره ناچارۍ عاجزۍ سره په طرف د عذاب سخت (د دوزخ).

تفسیر: یعنې د لږو ورځو عیش عشرت، بې فکري او بېغمي ده، کله چې د دوی دغه نېټه او مهلت ختم شي؛ نو خورا ډېرې سختې سزا ته به راښکودل شي، او هیڅ به د دوی له واکه نه وي پوره چې چېرې وتښتي، یا پټ شي.

وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ اللَّهُ ۚ قُلِ الْحَمْدُ لِلَّهِ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۲۵﴾

او قسم دی که وپوښتې ته دغه (کُفّار) چې چا پیدا کړي دي دغه اسمانونه او ځمکه؛ نو خامخا وبه وایي دوی چې: الله، (کله چې مقر شول دوی؛ نو ای محمده !) ووایه: ټوله ثناء خاص الله لره ده، بلکه زیاتره د دوی نه پوهیږي.

تفسیر: یعنې الحمد لله دغومره خو په خپلو ژبو اعتراف کوي، چې د اسمانونو او د ځمکې پیدا کول بې له الله تعالی نه د بل هیچا کار نشي کېدی، نو بیا اوس کوم قسم خوبي پاتې شوه چې د ده په پاک ذات کې نه وي موجوده؟ آیا د دغو عظیم الشأنو شیانو پیدا کول او بیا یې په یو مضبوط او ټینګ نظام په کار اچول، بې له اعلی درجې علم او حکمت، زور او قوّت امکان لري؟ نو هرومرو د «خالق السماوات والأرض» په ذات کې د ټولو کمالاتو د موجودیت منل لازمیږي، او دغه هم د ده د قدرت یوه نمونه ده، چې تاسې غونډې مجرمینو او منکرینو باندې هم د خپل عظمت او قدرت اقرار او اعتراف کوي، چې له دغه اقرار څخه وروسته تاسې ملزم ګڼل کېږئ، یعنې کله چې ستاسې په نزد هم خالق یوائې هم هغه الله دی؛ نو بیا ولې نور شیان مو خپل معبودان ګرځوئ؟ خبره خو صافه او سمه ده، خو سره له هغه ډېر کسان پرې نه پوهیږي، او دلته چې رسیږي؛ بند پاتې کیږي.

لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِیْدُ ﴿۲۶﴾

خاص الله لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې ملکا خلقًا عبيدًا)، بېشکه چې الله همدی دی غني بې پروا، ډېره ثناء ورته ويلې شوې ده.

تفسير: يعني هم هغسې چې د اسمانونو او د ځمکې پيدا کوونکی الله تعالی دی؛ همداسې ټول هغه شيان چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، ټول بلا استثناء بې د بل چا له اشتراکه د الله تعالی مخلوق او مملوک دي، او تمامًا د الله تعالی محتاج دي، او بالعکس پاک الله هيچا ته اړ او محتاج نه دی، ځکه چې د ده هيڅ يو کمال د بل چا څخه مستفاد نه دی، دی بالذات د ټولو عزتونو او محاسنو او ښېګڼو مالک دی، نو بيا به دی بل چا ته ولې محتاج او اړ وي؟ او د چا به څه پروا لري؟.

وَلَوْ اَنَّمَا فِی الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّالْبَحْرُ یَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ
كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِیْزٌ حَكِیْمٌ ﴿۲۷﴾

او که چېرې هغه څه چې په ځمکه کې دي له ونو څخه (هغه ټول) قلمونه شي، او (سياهي شي محيط) بحر، مرسته وکړي له ده سره پس له (تماميدلو د اوبو) د ده اوه (نور) بحرونه؛ نو خلاص به نشي کلمات د الله، بېشکه چې الله دی ښه غالب (د احکامو په انفاذ) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعني که د دنيا له ګردو (ټولو) ونو څخه قلمونه جوړ کړی شي، او دغه اووه موجوده ترخه بحرونه (سمندرونه) سياهي تيار کړل شي، او بيا د همدغو سمندرونو په شان اوه نور سمندرونه هم د ده د کار د کومک او معاونت لپاره پيدا کړل شي، او فرض يې کړئ چې د ټول عالم انسانان له خپل قدرت او قوّت سره سم هم په ليکلو لاسونه پورې کړي؛ خو سره له دغه هم د الله تعالی د کلمو د ليکلو د عهدې څخه ټول نشي وتلی، او د الله تعالی د کمالاتو او جلال، عظمت، او قدرت له اظهار څخه به ګرد سره عاجز او ناتوان پاتې شي، د ليکونکو عمرونه به تمام شي، قلمونه به په ډېرو ليکلو وسوليږي او مات به شي، سياهي به له ډېرو ليکلو څخه خلاصه شي، خو سره له دې به هم د الله تعالی تعريف، توصيف، محامد، محاسن او ثناء به ختم نشي، رښتيا خبره همدا ده چې: محدود او متناهي قوّتونه به څرنګه د الله تعالی لا محدود او غير متناهي صفات قيد او ضبط کړی شي؟ اللهم لا أحصي ثناء عليك، أنت كما أثنيت على نفسك.

مَا خَلْقُكُمْ وَلَا بَعْثُكُمْ اِلَّا كَنَفْسٍ وَّاحِدَةٍ ؕ

نه دي پيدا کول ستاسې او نه بيا ژوندي راپاڅول ستاسې مګر داسې دي لکه پيدا کول او ژوندي کول د يوه نفس.

تفسير: يعني د ټول جهان پيدا کول او د يوه انسان پيدا کول دواړه پاک الله ته يو شان سهل او آسان دي، نه په دغه کې څه اشکال او دقّت او نه په هغه کې څه سختي ورته پيښيږي، په يوه «کن» سره هر شي ته چې اراده وکړي؛ هم هغه کيږي.

اِنَّ اللّٰهَ سَمِیْعٌۢ بَصِیْرٌ ﴿۲۸﴾

بېشکه چې الله دی ښه اورېدونکی (د ټولو اقوالو) ښه ليدونکی (د ټولو احوالو).

تفسیر: یعنې څرنګه چې د یوه غږ اورېدل، یا د یو شي لیدل یا په یو وخت کې د ټول جهان د شیونو لیدل الله تعالی ته یو شان او برابر دي؛ همداسې د یوه سړي وژل او ژوندي کول، او د ګرد جهان د ټولو موجوداتو وژل او ژوندي کول الله تعالی ته برابر او مساوي دي، او د الله جل جلاله د قدرت په مقابل کې یو شان دي.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَّجْرِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى

آیا نه وینې (ته ای مخاطبه؟ بلکه وینې یې) چې بېشکه الله ننباسي شپه (په کامل قدرت خپل سره) په ورځ کې، او ننباسي (الله) ورځ په شپه کې، او مسخر کړي په کار اچولي یې دي تاسې ته لمر او سپوږمۍ، هر یو (له دغو دواړو نه لکه نور سیّارات) روان دي تر ټاکلې (مقرر کړې) مودې پورې.

تفسیر: د «مقرر وخت» څخه مراد قیامت دی، یا له لمر او سپوږمۍ څخه د هر یوه دوره ده، ځکه چې د یوې دورې د پوره کېدلو څخه وروسته کواکب دوی بیا له سره خپله دوره او تګ شروع کوي.

وَّاَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۲۹﴾

او بېشکه الله په هر هغه څه چې تاسې یې کوئ ښه خبر دی.

تفسیر: یعنې د الله تعالی هغه قوّت او قدرت ته چې له شپې څخه ورځ او له ورځې څخه شپه جوړوي، او د لمر او سپوږمۍ په شان له خورا ډېرو لویو لویو کراتو څخه د ادنا مزدورانو په شان کار اخلي، له مرګ نه وروسته ستاسې بیا ژوندي راپاڅول څه اشکال لري؟ او کله چې دی له هر لوی او وړوکي عمل څخه پوره واقف او عالم دی؛ نو بیا په حساب او کتاب کې به الله تعالی ته څه اشکال او سختي ورپېښه شي.

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَاَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهِ الْبَاطِلُ وَاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۳۰﴾

دغه (شامل معرفت، کامل قدرت) له دې سببه دي، چې بېشکه الله همدی حق دی، او بېشکه هغه (معبودان) چې بولي (عبادت یې کوي) دوی بې له دغه (الله) نه؛ حق نه دي، او بېشکه الله هم دی ښه پورته ډېر لوی دی.

تفسیر: یعنې د الله تعالی دغه عظیمه شئون او قاهره صفات ځکه ذکر شول؛ څو اورېدونکي وپوهېږي چې د یوه الله تعالی منل او د هم هغه واحد لا شریک عبادت کول؛ هم هغه سمه لاره ده، له دې نه خلاف هر څه چې وویل شي یا وکړل شي؛ باطل او دروغ دي.

اَلَمْ تَرَ اَنَّ الْفُلْكَ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِنِعْمَتِ اللّٰهِ لِيُرِيَكُمْ مِّنْ اٰيٰتِهٖ ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿۳۱﴾

آیا نه وینې ته چې بېشکه (دا) بېړۍ تګ کوي په بحر کې په فضل د الله، لپاره د دې چې وښیي تاسې ته له دلائلو د ده، بېشکه په دغې (بېړۍ او بحر) کې خامخا ډېر دلائل دي لپاره د هر ډېر صابر ډېر شاکر (په آفتونو او نعمتونو).

تفسیر: یعنې جهازونه او بېړۍ ډېر ثقیل او درانه بارونه وړي، او د الله تعالی په قدرت، فضل او مرحمت څرنګه د سمندر څپې سره څیروي او په کې ځي؟ یعنې د دغه بحري سفر په احوالو او حوادثو کې له غور کولو څخه انسان ته د صبر او شکر ډېر مواقع په لاس ورځي.

کله چې طوفان پورته شي، او جهاز د طوفان په څپو کې ګېر شي، او له هرې خوا له لویو پېښو او حوادثو سره مخامخ شي؛ نو دغه وخت د لوی صبر او تحمّل وخت دی، او کله چې الله تعالی دوی د مرګ او ژوند له دغه کشمکش څخه صحیح او سالم وباسي؛ نو حتمي او ضروري ده چې د الله تعالی د دغه احسان او مرحمت شکر اداء کړي. !.

وَإِذَا غَشِيَهُم مَّوْجٌ كَالظُّلَلِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ فَلَمَّا نَجَّاهُمْ إِلَى الْبَرِّ فَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ

او کله چې لاندې کړي دغه (کفار) یو موج لکه وریځې؛ نو بولي دوی الله په داسې حال کې چې خالص کوونکي وي دوی خاص الله ته (د) دین خپل، پس کله چې نجات ورکړي دوی ته الله طرف د وچې ته؛ نو ځینې د دوی ولاړ وي په (هم هغې) لارې سمې.

تفسیر: یعنې د طوفاني موجونو او څپو (چپو) له وېرې ډېر سخت اوغلیظ مشرک هم په ډېر اخلاص او عقیدې سره د الله تعالی په دربار کې دعا او استغفار کوي، او ترې خپل نجات او حیات غواړي؛ نو معلوم شو چې د انسان ضمیر او د فطرت اصلي غږ همدغه دی، او باقي ټول جعلي، ساختګي، موهوم او چټي (بېکاره) شیان دي.

پس هر کله چې پاک الله دوی له طوفان نه روغ رمټ وچې ته راوباسي؛ نو ډېر لږ کسان داسې دي چې د اعتدال او توسط په لاره قایم پاتې کیږي، که نه زیاتره څنګه چې له بحر څخه د باندې پل کیږدي؛ بېرته په خپلو هم هغو شرارتونو لاس پورې کوي.

وَمَا يَجْحَدُ بِآيَاتِنَا إِلَّا كُلُّ خَتَّارٍ كَفُورٍ ﴿٣٢﴾

او انکار نه کوي له دلائلو ځمونږ مګر هر هغه چې ډېر عهد ماتوونکی غدار زیات ناشکره وي.

تفسیر: یعنې اوس لږه شبهه پخوا یې د طوفان له وېرې څخه کوم قول چې له الله تعالی سره تړلی وو؛ هغه بیخي غلط او دروغ ثابت شو، څو ورځې یې هم د ده د هغه انعام او احسان حق ونه مانه.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ وَاخْشَوْا يَوْمًا لَّا يَجْزِي وَالِدٌ عَن وَلَدِهِ وَلَا مَوْلُودٌ هُوَ جَازٍ عَن وَالِدِهِ شَيْئًا

ای خلقو ! وویرېږئ تاسې (ټول له عذابه) د رب خپل، او وویرېږئ تاسې له هغې ورځې چې نه به شي دفع کولی عذاب هیڅ پلار له ځوی خپل، او نه به هیڅ ځوی (داسې وي) چې هغه دفع کوونکی شي له پلار خپل څخه کوم شی (څه عذاب).

تفسیر: د طوفان په وخت کې د جهاز مسافران سخت پریشان، وارخطا وي، او له هر انسان سره یوازې د خپل ځان د خلاصون فکر او اندېښنه وي، خو سره له هغه هم مور او پلار له خپلو اولادو، او اولاد له خپل مور او پلار څخه بیخي غافل او بې پروا نه وي، او هر یو د بل د نجات او خلاصي او مرستې په فکر کې وي، بلکه ډېر کله د والدینو شفقت غواړي چې هر راز زحمت او مصیبت په خپل ځان واخلي، چې خپل اولاد له هغه مصیبت څخه وژغوري، لیکن د

دې په عکس یوه داسې ویروونکې او هولناکه ورځ راتلونکې ده، چې په هغې کې به له هر طرفه هم دغه د «نفسي ! نفسي !» غږ راپورته کیږي، نه اولاد او نه والدین بلکه هیڅوک به داسې یو ایثار او شفقت ونشي کړی، چې د بل لږ څه مصیبت په ځان واخلي.

نو په هر انسان لازم دي چې لا له اوسه د هغې ورځې په فکر او اندېښنه کې واوسي ! او د هغې لپاره توښه برابره کړي ! او زیار وکړي، څو د الله تعالی له قهر او غضب څخه مأمون او مصون پاتې شي، که نن دوی د سمندر له طوفانه روغ رمټ ووتل، نو سبا خو دوی د حشر له ډګر څنې په هیڅ صورت نشي وتلی.

إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ فَلَا تَغُرَّنَّكُمُ الْحَيَوٰةُ الدُّنْيَا وَلَا يَغُرَّنَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴿۳۳﴾

بېشکه وعده د الله رښتیا ده (د بعث، د حساب، د جزا وعده) پس نه دې غره کوي تاسې خامخا دغه ژوندون لږ خسیس ! او نه دې غره کوي خامخا تاسې په (عفو او کرم د) الله هیڅ غره کوونکی.

**تفسیر:** یعني هغه ورځ یقینًا او قطعًا راتلونکې ده، او داسې یې مه ګڼئ چې هر څوک چې دلته په آرام وي؛ نو بې له ایمان او صالح عمل څخه هلته به هم په آرامۍ او هوسایۍ کې وي، د ټګ شیطان له مکر او فرېب او اغواء څخه تل هوښیار او ویښ اوسئ ! چې شیطان مو د الله تعالی په نامه هم غولوي، او داسې درته وايي: څه خانه ! ښغمه خپلې چرچې او مزې کوه ! پاک الله غفور رحیم دی، که ستا په تقدیر کې جنّت لیکلی وي؛ نو هر څومره ګناهونه چې وهم کړې؛ بالآخر به جنّت ته ځې، که په تقدیر کې دې دوزخ لیکلی شوی وي؛ نو په هیڅ ډول ته خپل ځان له دوزخه نشې خلاصولی؛ نو بیا د څه لپاره په دنیا کې مزې نه کوې؟.

إِنَّ اللَّهَ عِندَهُۥ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِى الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِى نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِى نَفْسٌۢ بِأَىِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌۢ ﴿۳۴﴾

بېشکه الله خاص همده څخه دی علم (د قیام) د قیامت، او نازلوي الله باران (او د نزول په وخت یې هم علم لري)، او معلوم دی الله ته هغه شی چې په ارحامو (د میندو په نسونو) کې وي (لکه نرتوب او ښځه توب یې او داسې نور)، او نه پوهیږي هیڅ نفس چې څه کار به کوي سبا، او نه پوهیږي هیڅ نفس چې په کومه ځمکه کې به مري، بېشکه الله دی ښه عالم (په دغو شیانو او نورو ټولو اقوالو) ښه خبردار (په ټولو احوالو) دی.

**تفسیر:** یعني قیامت خامخا راتلونکی دی، د دې علم یواځې له الله تعالی سره دی، دغه نه ده معلومه چې دغه دنیوي لویه کارخانه به کله ویجاړه او دړې وړې کیږي؟، په دغه آیت کې چې دا پنځه شیان مذکور دي؛ په احادیثو کې یې دغو ته «مفاتیح الغیب» ویل شوي دي، چې د هغه کلي علم پرته (علاوه) له الله څخه بل هیچا ته نشته.

«تمت سورة لقمان بمنّه وکرمه»



# سُورَةُ السَّجۡدَةِ

«د السجدة سورت مكي دی، پرته له (۱۶) آيت څخه تر آخر د (۲۰) آيت چې مدني دي، (۳۰) آيتونه او (۳) ركوع لري، په تلاوت كې (۳۲) او په نزول كې (۷۵) سورت دی، وروسته د (المؤمنون) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

الٓمٓ ۝١ تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ لَا رَيۡبَ فِيهِ مِن رَّبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝٢

نازلېدل د (دغه) كتاب (قرآن) چې نشته هيڅ شك په دغه كې له (جانبه) د رب د عالميانو دی.

تفسير: بې شكه دغه مقدّس كتاب رب العالمين نازل كړی، په دغه كې نه څه شك شته او نه شبهه، او نه د فرېب او تېرويستلو ځای دی، ليكن كفّار دا خبره نه مني چې راغلی دی دا قرآن له طرفه د الله تعالی.

أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُۚ بَلۡ هُوَ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكَ لِتُنذِرَ قَوۡمًا مَّآ أَتَىٰهُم مِّن نَّذِيرٖ مِّن قَبۡلِكَ
لَعَلَّهُمۡ يَهۡتَدُونَ ۝٣

آيا وايي (دغه كفّار) له خپله ځانه يې جوړ كړی دی دا (قرآن محمد، داسې نه دی) بلكه همدغه (قرآن) حق دی (نازل شوی دی) له جانبه د رب ستا، چې وويروې ته (په قرآن سره) هغه قوم چې نه دی راغلی دوی ته هيڅ ويروونكی پخوا له تانه (تر اسماعيل عليه السلام پورې)، لپاره د دې چې سمه لاره ومومي دوی (په سبب د وېرولو ستا).

تفسير: يعني د هغه كتاب په باب كې چې اعجاز او حقانيت يې دومره ښكاره او واضح دی، چې د هيڅ شك او شبهې ځای په كې نشته؛ آيا د هغه په نسبت كفار داسې اظهار كوي چې رسول الله دغه قرآن له خپله ځانه جوړ كړی دی، او (معاذ الله) د لويو دروغو نسبت پاك الله ته كوي؟ نو دغه د دوی انتهايي لجاجت، ګستاخي او سپين سترګي ده، چې په داسې واضح او روښانه بيان كې هم له خپله ځان شبهې پيدا كوي، كه دوی لږ څه غور او انصاف كولی؛ نو دوی ته به معلومه شوې وی چې په رښتيا سره دغه كتاب د پاك الله له طرفه راغلی دی، او ته كوښښ كوې چې د هغه په وسيله يو داسې قوم ويښ او هوښيار او په سمه لار يې راولې؛ چې له څو پېړيو راپه دېخوا په دوی كې ويښوونكی نبي نه دی مبعوث شوی.

ٱللَّهُ ٱلَّذِي خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضَ وَمَا بَيۡنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٖ ثُمَّ ٱسۡتَوَىٰ عَلَى ٱلۡعَرۡشِۖ

الله هغه ذات دی چې پيدا كړي يې دي اسمانونه او ځمكه او هر هغه چې په منځ د دغو دواړو كې دي په شپږو ورځو كې، بيا اوچت شو په عرش باندې (هم هغسې چې لايقه وه له شانه د الله سره، نو ايمان راوړئ پرې !).

تفسير: د «استواء» بيان د «الأعراف» په (۷) ركوع كې تېر شوی دی، هلته دې بيا ولوستل شي !.

مَا لَكُم مِّن دُونِهِۦ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ ۚ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٤﴾

نشته تاسې لره (ای کفارو) غیر له الله هیڅ دوست او نه شفاعت کوونکی (چې عذاب در څخه دفع کړي)، آیا پس نه اخلئ پند (په دغه وعظ).

**تفسیر:** یعنې غور او فکر نه کوئ؟ د الله تعالی د پیغام او د ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دروغجن ګڼلو څخه وروسته به تاسې چېرې ځئ؟ په ګردو اسمانونو او ځمکه کې له فرشه تر عرشه پورې د الله تعالی حکومت دی، که ونیولی شوئ؛ نو بې د هغه د اجازې او رضا به مو هیڅوک څه حمایت او سپارښت ونشي کړی، او نه به داسې کوم حامي او سپارښت کوونکی وموموئ!.

او الله تعالی داسې مطلق قادر دی چې:

يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴿٥﴾

تدبیر کوي (او نازلوي) امر کار له اسمانه ځمکې ته (تر ورځې د قیامت پورې) بیا بېرته خیژي هغه کار ده ته په هغې ورځې کې چې ده اندازه د هغې (ورځې) زر کاله له هغو «دنیوي وختونو» چې یې شمېرئ تاسې.

**تفسیر:** مفسّرین د دغه آیت مطلب داسې بیانوي چې: «د الله تعالی حکم د اسمانونو له پاسه تر ځمکې پورې رسیږي، بیا هر هغه کاروایي چې د هغه په متعلق دلته کیږي؛ هغه د اعمالو په دفتر کې د درج کېدلو لپاره پاس خیژي، او له ځمکې څخه د هغه ځای فاصله د انسان په متوسط تګ سره د یو زر کاله لاره ده، چې د الله تعالی په نزد هغه د یوې ورځې لاره ټاکلې شوې ده، مسافه خو هم دغومره ده، دغه خو بېله خبره ده چې پرښته هغه په یوه ګړۍ کې وهي، یا له دې نه هم په لږه موده کې وررسیږي».

ذَٰلِكَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ ﴿٦﴾

هم دی (خالق او د امورو مدبر) عالم دی په هر پټ او ښکاره، ښه غالب قوي دی، ښه مهربان دی.

**تفسیر:** یعنې د داسې اعلی او عظیم الشأن انتظام او تدبیر قایمول د هغه پاک ذات کار دی، چې په هر یو پټ او ښکاره شي علیم او خبیر دی، او ډېر زبردست او نهایت مهربان دی.

الَّذِي أَحْسَنَ كُلَّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ۖ وَبَدَأَ خَلْقَ الْإِنسَانِ مِن طِينٍ ﴿٧﴾ ثُمَّ جَعَلَ نَسْلَهُ مِن سُلَالَةٍ مِّن مَّاءٍ مَّهِينٍ ﴿٨﴾ ثُمَّ سَوَّاهُ وَنَفَخَ فِيهِ مِن رُّوحِهِ

هغه الله چې ښایسته کړی یې دی هر شی چې پیدا کړی یې دی هغه (هر موجود بالخاصه انسان)، او شروع کړی یې پیدایښت د انسان (یعنې آدم) له خټې څخه. بیا یې پیدا کړ نسل اولاد د ده له خلاصې له اوبو ضعیفو حقیرو څخه. بیا یې برابر کړ (قالب د) هغه او پو (داخل) یې کړ په دغه (قالب) کې له روح خپل څخه (چې مخلوق د ده دی).

**تفسیر:** یعنې الله تعالی د انسان نسل او اولاد له خلاصې له اوبو ضعیفو حقیرو څخه چې د خورا ډېرو غذاګانو عُصاره او خلاصه ده، بیا یې برابر کړ قالب د هغه یعنې شکل، صورت او اعضاء یې موزون او متناسب خلق او موجود کړي دي،

او پو، داخل یې کړ په دغه قالب کې روح خپل، شاه صاحب لیکي چې: «ګرد مخلوقات د ده مال دی، مګر هر چا ته یې چې ډېر پت او عزت ورکړی دی؛ هغه یې خپل بللی دی، لکه چې وايي: ﴿إِنَّ عِبَادِي لَيْسَ لَكَ عَلَيْهِمْ سُلْطَٰنٌ﴾ حال دا چې ټول د الله تعالی بندګان دي، لکه چې الله تعالی ویلي دي: ﴿إِن كُلُّ مَن فِي السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ إِلَّآ ءَاتِي الرَّحْمَٰنِ عَبْدًا﴾.

وَجَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَٰرَ وَالْأَفْـِٔدَةَ ۚ قَلِيلًا مَّا تَشْكُرُونَ ﴿٩﴾

او وېې ګرځول (در یې کړل) تاسې ته (ای د آدم اولاده) غوږونه او سترګې (چې پرې اورئ او وینئ) او زړونه (چې عقل او فکر پرې کوئ)، خو سره د دغو نعمتونو بیخي لږ شکر کوئ تاسې !.

تفسیر: د دغو نعمتونو شکر دا وو چې پخپلو سترګو مو د ده تکویني آیتونه په غور سره کتلي وی، او پخپلو غوږونو مو د ده تنزیلي آیتونه په پوره توجه او شوق سره اورېدلي وی، او په خپلو زړونو سره مو د دغو دواړو په پوهېدلو او غور او فکر کولو کې پوره کوښښ او زیار ایستلی وی، او وروسته له پوهېدلو مو پرې عمل کړی وی، مګر تاسې خلق ډېر لږ شکر اداء کوئ.

وَقَالُوٓا۟ أَءِذَا ضَلَلْنَا فِي الْأَرْضِ أَءِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍۭ ۚ بَلْ هُم بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ كَٰفِرُونَ ﴿١٠﴾

او وايي (منکران د بعث) آیا کله چې ورک شو مونږ په ځمکه کې (چې خاورې شو)؛ آیا مونږ خامخا په نوي پیدایښت کې یو؟ (بلکه نه یو، نو الله وايي: نه ده داسې چې دوی وايي) بلکه دوی له ملاقات د رب خپل څخه منکران دي (چې په قیامت باندې ایمان نه راوړي).

تفسیر: یعنې په دغه خبره یې غور او فکر ونه کړ؛ چې پاک الله دوی اول له خاورو څخه پیدا کړي دي، او په خلاف د هغه یې د شبهو په پیدا کولو شروع وکړه، چې آیا له دې نه وروسته چې ځمونږ جسم له خاورو سره ګډوډ شي، بیا به څرنګه مونږ ژوندي راپاڅول کېږو؟ دغه خو تشه یوه شبهه او استبعاد نه دی، بلکه په صاف ډول سره دغه خلق له بعث بعد الموت څخه منکر شوي دي.

قُلْ يَتَوَفَّىٰكُم مَّلَكُ الْمَوْتِ الَّذِي وُكِّلَ بِكُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُمْ تُرْجَعُونَ ﴿١١﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) قبض کوي ارواح ستاسې پرښته د مرګ هغه چې مقرره شوې ده په تاسې (لپاره د قبض د ارواحو) بیا به رب خپل ته بېرته بوتلل شئ (پس له مرګ نه د حساب لپاره).

وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُوا۟ رُءُوسِهِمْ عِندَ رَبِّهِمْ رَبَّنَآ أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَٰلِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ ﴿١٢﴾

او که وویني ته (ای محمده !) کله چې دغه کافران ښکته اچوونکي به وي د سرونو خپلو په نزد د رب خپل (په ورځ د قیامت کې له ذلت ندامت او خجالت نه، او وايي به) ای ربه ځمونږ ! ولیده مونږ او واورېده مونږ (وعده ستا او تصدیق د رسولانو)؛ پس بېرته بوځه مونږ (دنیا ته لپاره د دې چې وکړو ښه عمل، بېشکه چې مونږ یقین کوونکي یو (نو وبه ګورې ته یو سخت بد کار، او دغه وینا به دوی ته له سره څه ګټه نه رسوي).

**تفسیر:** یعني څمونږ غوږونه او سترګې خلاصې شوي دي، د رسول الله په هغو خبرو چې ویلې یې دي؛ څمونږ یقین راغی، او دغه ګرد شیان مو په خپلو سترګو سره ولیدل، او ښه وپوهېدو چې یوائې ایمان او صالح عمل د الله جل جلاله په نزد منظور او مقبول دی، او په کار راځي، اوس مو یو ځلې بیا دنیا ته ولېږه، او ومو ګوره چې مونږ څرنګه ښه عملونه کوو.

وَلَوْ شِئْنَا لَاٰتَيْنَا كُلَّ نَفْسٍ هُدٰىهَا وَلٰكِنْ حَقَّ الْقَوْلُ مِنِّيْ لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿۱۳﴾

او که اراده کړې وی مونږ؛ نو خامخا ورکړی به وو مونږ هر نفس ته (په دنیا کې) هدایت د هغه، ولیکن مقرّره شوې ده دغه وینا (حکم) له ما چې خامخا ډک به کړم خامخا دوزخ (له کفارو نه) له پیریانو او انسانانو ټولو څخه.

**تفسیر:** مونږ په دغه خبره قادر یو چې د دنیا ګرد انسانان په جبر او زور سره د هدایت په لاره راولو، او پرې قائم یې کړو، چې د هغه په لوري د انسانانو زړونه فطرتًا مایل دي، لیکن په دغه تقدیر سره چې ګرد انسانان په همدغه یوه طریقه اختیارولو مجبور کول؛ دغه څمونږ د حکمت څخه مخالف وو، چې د هغه بیان په څو نورو ځایونو کې پخوا له دې نه تېر شوی دی، نو هم هغه خبره پوره کېدونکې وه چې د ابلیس د دغې دعوی: ﴿لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ * اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ﴾ (د ص سورت) (۸۲ - ۸۳ آیت) په ځواب کې ویلې وه: ﴿قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ اَقُوْلُ * لَاَمْلَئَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ اَجْمَعِيْنَ﴾ (د ص (۵) رکوع، (۸۴ - ۸۵) آیت (۲۳) جزء)، معلومه شوه چې دلته له جن او انس څخه مراد هم هغه شیاطین او د هغو پیروان دي.

فَذُوْقُوْا بِمَا نَسِيْتُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ۚ اِنَّا نَسِيْنٰكُمْ وَذُوْقُوْا عَذَابَ الْخُلْدِ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۴﴾

پس وڅکئ تاسې (دا عذاب) په سبب د دې چې هېر کړی وو تاسې ملاقات د ورځې ستاسې چې دا دی، بېشکه چې مونږ به هم هېر کړو تاسې، او وڅکئ تاسې عذاب دائمي په سبب د هغه (کفر او تکذیب) چې وئ تاسې چې کاوه به مو (په دنیا کې).

**تفسیر:** یعني مونږ هم تاسې هېر کړي یئ، یعني هیڅکله به په رحمت سره نه یادول کېږئ، وروسته له دې نه د مجرمینو په مقابل کې د مؤمنانو حال او مآل بیانوي.

اِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ اِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۱۵﴾ تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ يَدْعُوْنَ رَبَّهُمْ خَوْفًا وَّطَمَعًا ۖ وَّمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ﴿۱۶﴾

بېشکه همدا خبره ده چې ایمان راوړي په آیتونو څمونږ هغه کسان کله چې پند ورکړی شي دوی ته په دغو (آیتونو)؛ نو پرېوځي په داسې حال کې چې سجده (عبادت) کوونکي وي الله ته او تسبیح وایي سره له ثناء د رب خپل، او دوی تکبّر لویي نه کوي (له عبادت نه). لرې کیږي ډډې د دوی له ځایونو د خوب (لپاره د تهجّد)، بولي دوی رب خپل (پټ له خلقو نه) له وېرې (د قهره د الله نه) او له طمعې (د رحمت د ده نه)، او ځینې له هغو مالونو چې ورکړي دي مونږ دوی ته لګوي (یې په لاره د الله کې).

**تفسیر:** یعني په خوف او خشیت او خشوع او خضوع په سجده لوېږي، په ژبه سره د الله تعالی تسبیح او تحمید اداء کوي، او په زړه کې د کبر، غرور، داسې خبرې نه ګرځوي چې د الله د آیتونو په مقابل کې د تیټېدلو څخه مانع وي،

له خوړو خوبونو او پستو بسترو څخه پورته کیږي، او د پاک الله په حضور کې دریږي، له دې نه مراد د تهجّد لمونځ دی، لکه چې په صحیح حدیث کې راغلي دي.

او ځینو ترې د سبا او د عشا د لمانځه یا د مغرب او د عشا د لمانځه په منځ کې کوم نفلونه چې کیږي؛ هغه مراد کړي دي، ګواکې په الفاظو کې د دې خبرې د ځاییدلو ځای هم شته، لیکن قوي هم هغه لومړنی تفسیر دی، والله أعلم.

فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّآ أُخْفِيَ لَهُم مِّن قُرَّةِ أَعْيُنٍ جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٧﴾

پس نه دي معلوم هیڅ نفس ته (نه پرښتې او نه نبي ته) هغه شی چې پټ کړی شوی دی دوی ته له یخوالي د سترګو نه، لپاره د جزاء د هغه عمل چې وو دوی چې کاوه به یې (پټ).

تفسیر: یعنې څرنګه چې د شپو په تیارو کې له خلقو څخه په پټه دوی بې ریاء عبادت کړی دی؛ د هغه په بدل کې الله تعالی هغه نعمتونه پټ ساتلي دي، او د هغو پوره کیفیت هیچا ته نه دی معلوم؛ دوی ته ورکوي چې د هغو د لیدلو څخه د دوی سترګې روښانه کیږي، په حدیث کې راغلي دي چې: ما خپلو نېکو بندګانو له په جنت کې داسې شیان پټ ساتلي دي، چې د هغو مثال نه سترګو لیدلی دی، او نه د هغه تعریف غوږونو اورېدلی دی، او نه د کوم انسان په زړه کې ګرځېدلی دی.

أَفَمَن كَانَ مُؤْمِنًا كَمَن كَانَ فَاسِقًا ۚ لَّا يَسْتَوُۥنَ ﴿١٨﴾

آیا پس هغه څوک چې وي مؤمن لکه هغه څوک دی چې وي هغه فاسق، نه دي برابرې (دا دواړه ډلې).

أَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ فَلَهُمْ جَنَّٰتُ ٱلْمَأْوَىٰ نُزُلًۢا بِمَا كَانُوا۟ يَعْمَلُونَ ﴿١٩﴾

هر چې هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ پس شته دوی لره جنتونه د هستوګنې په طریقه د مېلمستیا په سبب د هغو عملونو چې وو دوی چې کول به یې (په دنیا کې).

تفسیر: یعنې د الله تعالی په فضل به د دوی صالح عمل د جنت د مېلمستیا سبب ګرځي.

وَأَمَّا ٱلَّذِينَ فَسَقُوا۟ فَمَأْوَىٰهُمُ ٱلنَّارُ ۖ كُلَّمَآ أَرَادُوٓا۟ أَن يَخْرُجُوا۟ مِنْهَآ أُعِيدُوا۟ فِيهَا وَقِيلَ لَهُمْ ذُوقُوا۟ عَذَابَ ٱلنَّارِ ٱلَّذِى كُنتُم بِهِۦ تُكَذِّبُونَ ﴿٢٠﴾

او هر چې هغه کسان چې فاسقان شوي دي؛ پس ځای د هستوګنې د دوی اور (د دوزخ) دی، هر کله چې اراده وکړي دوی د دې چې راووځي له دغه اوره؛ نو بېرته به غورځول کیږي دوی په دغه اور کې، او ویل کیږي به دوی ته: (د اهانت په ډول) وڅکئ تاسې عذاب د اور هغه عذاب چې وئ تاسې چې د هغه به مو تکذیب کاوه (په دنیا کې او باور مو پرې نه کاوه).

تفسیر: یعنې کله کله چې د اور شُغلې دوزخیان د دروازې په لوري وغورځوي؛ په دغه وخت کې ښایي دوی د تښتېدلو په فکر کې ولویږي؛ نو پرښتې به له هغه ځای څخه دوی په ټېل وهلو سره بېرته بیایي، او دوی ته به وایي: چېرې ځئ؟ هغه شی مو چې دروغ باله، او باور مو پرې نه کاوه؛ اوس د هغه خوند او مزه وڅکئ ! (اللهم أعذني من النار، و أجرني من غضبک).

وَلَنُذِيقَنَّهُم مِّنَ الْعَذَابِ الْأَدْنَىٰ دُونَ الْعَذَابِ الْأَكْبَرِ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ ﴿٢١﴾

او خامخا وبه څکوو مونږ خامخا په دوی باندې له هغه عذاب نژدې (په دنيا کې) لږ له عذاب لوی نه (چې د آخرت دی) لپاره د دې چې دوی وګرځي (له کفر نه اسلام ته).

**تفسير:** يعنې د آخرت د لوی عذاب څخه پخوا په دنيا کې لږ څه کمه درجه عذاب پرې نازلوو، څو هغه کسان چې د رجوع توفيق ور په برخه وي؛ له الله تعالى څخه ووېرېږي او الله تعالى ته رجوع وکړي، کمه درجه عذاب همدغه دنيوي مصائب دي، لکه ناروغي، قحط، قتل، قيد، د مال او د اولاد او د نورو تباهي او نور.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَا ۚ إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنتَقِمُونَ ﴿٢٢﴾

او څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې پند ورکړ شي په آيتونو د رب خپل (قرآن) بيا مخ وګرځوي ترې (فکر او غور ونه کړي په کې)، او وروسته له پوهېدلو ترې بېرته وګرځي، بلکه له دې نه ډېر ظالم نشته)، بېشکه چې مونږ له دغو مجرمانو څخه انتقام اخيستونکي يو (په عذاب سره).

**تفسير:** کله چې مونږ له ټولو ګناهګارانو او ظالمانو او مجرمانو څخه انتقام او بدل اخيستونکي يو؛ نو دغه ډېر ظالم به څرنګه نجات ومونډلی شي؟ له دې نه وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم ته تسلي ورکوي چې ته د دوی له ظلم او اعراض څخه مه خپه کېږه ! پخوا مو موسى عليه السلام ته هم کتاب ورکړی وو، چې په هغه سره بني اسرائيلو هدايت وموند، او د ده په تابعانو کې لوی لوی ديني پېشوايان او امامان تېر شول، تاته هم بېشکه د الله تعالى له طرفه دغه عظيم الشأن کتاب درکړی شوی دی، چې ډېر خلق به پرې لار ومومي، او له بني اسرائيلو څخه به زيات ستا په امّت کې لوی لوی امامان او پېشوايان پيدا شي، پاتې شوه د منکرانو فيصله؛ هغه به پخپله الله پاک کوي.

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ فَلَا تَكُن فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ ۖ وَجَعَلْنَاهُ هُدًى لِّبَنِي إِسْرَائِيلَ ﴿٢٣﴾

او خامخا په تحقيق ورکړی وو مونږ موسى ته کتاب (د تورات لکه چې تاته مو ای محمده قرآن درکړی دی)، پس مه کېږه ته ! په شک کې له ملاقاته د دغه (موسى)، او ګرځولی وو مونږ تورات يا موسى هدايت لپاره د بني اسرائيلو (اولاده د يعقوب).

**تفسير:** ﴿فَلَا تَكُن فِي مِرْيَةٍ مِّن لِّقَائِهِ﴾ په منځ کې معترضه جمله ده، يعنې بېشکه او بې شبهې موسى عليه السلام ته کتاب ورکړی شوی وو، او تاته هم داسې کتاب درکړی شوی دی، چې په دغه کې هيڅ قسم چل او فرېب نشته، يا يې د موسى عليه السلام د ذکر په نسبت وويل چې: تاسې له موسى عليه السلام سره د معراج په شپه کې وليدل، هغه واقعي او حقيقي ملاقات وو، او په هغه کې هيڅ قسم چل، تېرايستل، سترګې پټول او نور شک او شبهه نه وه.

وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا ۖ

او ګرځولي وو مونږ ځيني له دوی نه امامان چې لاره به يې ښووله (خلقو ته) په حکم ځمونږ کله چې صبر وکړ دوی (په دين خپل).

**تفسير:** يعنې د دنيا په سختيو او د منکرانو په ظلم او تېريو يې صبر وکړ، او خپل دين يې ټينګ وساته.

وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ ﴿۲۴﴾

او وو دوی چې په آیتونو ځمونږ (چې له انبیاء الله سره وو؛) یقین به یې کاوه.

**تفسیر:** یعنې مسلمانان دې د الله تعالی په وعدو یقین او باور ولري، او په سختیو دې صبر وکړي، او پخپلو کارونو کې دی ثابت او قائم اوسي، نو له دوی سره به پاک الله هم داسې معامله وکړي لکه چې وشوه او ښه وشوه.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۲۵﴾

او بېشکه رب ستا هم دی به فیصله کوي په منځ د دوی کې په ورځ د قیامت کې په هغه شي کې چې وو دوی په دغه شي کې (په دغه دنیا کې چې سره) اختلاف به یې کاوه.

**تفسیر:** یعنې د اهل الحق او منکرانو په منځ کې قاطعه او عملي پرېکړه به د قیامت په ورځ وشي، هو ! په دنیا کې هم ډېر مثالونه داسې ښوول شوي دي چې انسان د هغو له لیدلو ځخه پوهه او عبرت حاصلولی شي.

أَوَلَمْ يَهْدِ لَهُمْ كَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِنَ الْقُرُونِ يَمْشُونَ فِي مَسَاكِنِهِمْ ۚ إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ ۖ أَفَلَا يَسْمَعُونَ ﴿۲۶﴾ أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا نَسُوقُ الْمَاءَ إِلَى الْأَرْضِ الْجُرُزِ فَنُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا

آیا (لاره د عبرت) نه ده ښوولې دغو (مکیانو) ته (دې خبرې) چې څومره هلاک کړي دي مونږ پخوا له دوی نه له اهل د زمانو چې تل تیریږي (دغه کفّار) په (ورانو) کورونو د دوی، بېشکه په دغه (هلاکولو د پخوانیو) کې خامخا لوی دلائل د قدرت دي، آیا پس نه اوري دوی (د عبرت په غوږونو). آیا نهویني دوی چې بېشکه مونږ بهوو (ویالې د) اوبو طرف د ځمکې وچې ته (چې ګیاه په کې نه وي) پس راوباسو مونږ په هغو سره کښت.

**تفسیر:** یعنې بهوو مونږ د نهرونو، ویالو او د سیندونو اوبه یا د باران اوبه، نو آیا نه ویني دوی دا چې بېشکه مونږ راوکاږو اوبه ځمکې وچې ته چې ګیا په کې نه وي، له ﴿الْأَرْضِ الْجُرُزِ﴾ څخه هغه وچه توره ځمکه مراد ده، چې له نباتاتو څخه تشه او خالي وي، ځینې ترې خاص د مصر ځمکې مصداق او مراد ګرځوي، او له ﴿نَسُوقُ الْمَاءَ﴾ څخه د نیل د سیند اوبه مرادوي، ولې دې تخصیص ته هیڅ ضرورت نشته، کما نبّه علیه ابن کثیر رحمه الله.

تَأْكُلُ مِنْهُ أَنْعَامُهُمْ وَأَنْفُسُهُمْ ۖ أَفَلَا يُبْصِرُونَ ﴿۲۷﴾

چې خوري له دغه کښته چارپایان د دوی (واښه، پاڼې) او نفسونه د دوی (دانه او مېوه)، آیا پس نه ویني (نښې د قُدرت د ده).

**تفسیر:** یعنې ښایي چې دغه نښې یې کتلې او د الله تعالی په کامل قدرت، حکمت او رحمت قایل شوي وي، او ښه پوه شوي وي چې دی همداسې د مړي په لاش کې هم بیا روح ننباسي، او دغه «بعث بعد الموت» ده ته څه اشکال او سختي نه لري، او هم ښایي چې د الله تعالی په نعمتونو یې د زړه له کومې شُکر ویستلی وي.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْفَتْحُ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ﴿۲۸﴾

او وایي (کفّار): کله به وي دغه فتح (فیصله) که چېرې یئ تاسې رښتیني (په دغه فتحه کې).

**تفسير:** پخوا يې ويلي وو چې: د دوی فيصله به د قيامت په ورځ کيږي، د ده په نسبت به منکرينو داسې ويل چې: ته پرله پسې قيامت قيامت وايې، که ته رښتينی يې نو راوښيه چې هغه ورځ به کله راځي؟ مطلب دا دی چې دغه خو تش ډارول او چټي انداز دی، قيامت او نور هيڅ نشته.

قُلۡ يَوۡمَ ٱلۡفَتۡحِ لَا يَنفَعُ ٱلَّذِينَ كَفَرُوٓاْ إِيمَٰنُهُمۡ وَلَا هُمۡ يُنظَرُونَ ﴿٢٩﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې په ورځ د فتح (قيامت) کې هيڅ نفع به ونه رسوي هغو کسانو ته چې کافران شوي دي؛ ايمان راوړل د دوی (په دغه ورځ کې)، او نه به دوی ته مهلت ورکړ شي، او نه به دوی ته انتظار وکړ شي.

**تفسير:** يعنې اوس وخت دی چې د الله تعالی او د رسول الله صلی الله عليه وسلم په خبرو يقين او باور وکړئ، او د هغې ورځې له عذابه ځان وژغورئ (وساتئ) !، او ورته بيخي آماده او تيار شئ ! وروسته له هغه چې قيامت شي، بيا ايمان او باور له سره نه پکاريږي، او نه به په سزا کې څه تأخير، تخفيف او مهلت وي، او نه مجرم ته داسې کومه موقع او فرصت ورکاوه کيږي، چې په هغه کې دی د خپلو اعمالو تعديل او اصلاح وکړي، او بيا خپل حساب او کتاب ته حاضر شي، نو د دغه وخت فرصت او مهلت غنيمت وګڼئ ! او په تکذيب او استهزاء خپل وخت مه ضايع کوئ ! هغه ساعت چې راتلونکی دی؛ يقينًا او قطعا راځي، او له سره په کې هيڅ ډيل، تعطيل او تأخير نشته، نو داسې پوښتنې او وينا بيخي فضولې او بېکاره دي، چې هغه ورځ به کله راځي؟ او څه وخت به دغه فيصله صادريږي؟.

فَأَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ وَٱنتَظِرۡ إِنَّهُم مُّنتَظِرُونَ ﴿٣٠﴾

پس مخ وګرځوه ! له دوی نه، او منتظر اوسه (د الله نصرت ته)، بېشکه دوی هم منتظر دي (د غلبې په تا).

**تفسير:** يعنې هغه کسان چې داسې بې فکره او بې حسه دي، چې د انتهايي مجرموالي او د سزا د وړ ګرځېدلو سره سره د فيصلې د ورځې او د سزا صدور پورې خاندي؛ نو له دوی څخه څرنګه داسې هيله او توقع کېدی شي چې ګوندې دوی په سمه لاره راشي؟، نو تاسې د خپل تبليغ او د دعوت د فريضې په اداء کولو کې مصروف او لګيا اوسئ ! او د دوی له زيات فکر او خيال څخه بيخي بې پروا شئ ! او هغوی پخپل سر پرېږدئ ! او د دوی د هلاکېدو او تباهی په انتظار کې اوسئ ! لکه چې هغوی هم پخپل زعم او اټکل (معاذ الله) ستاسې د تباهی او خرابی په انتظار کې دي، (و هذا قبل الأمر بقتالهم).

تمت سورة السجدة ولله الحمد والمنّة.



# سُورَةُ الأَحْزَابِ

«د (الأحزاب) سورت مدني دی، (۷۳) آيت (۹) رکوع لري، په تلاوت کې (۳۳) او په نزول کې (۹۰) سورت دی، وروسته د آل عمران د سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ اتَّقِ اللهَ وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ ۗ اِنَّ اللهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱﴾ وَّاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ۗ اِنَّ اللهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۲﴾ وَّتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ ۗ وَكَفٰى بِاللهِ وَكِيْلًا ﴿۳﴾

ای نبي (محمده !) وويرېږه له الله څخه، او مه منه خبره د کافرانو او د منافقانو، بېشکه چې الله دی ښه عالم پر هر شي، ښه حکمت والا. او متابعت کوه ! (ای محمده !) د هغه (حکم) چې درلېږل شوی دی تاته له جانبه د رب ستا، بېشکه چې الله دی پر هغو کارونو چې کوئ يې تاسې ښه خبردار. او توکّل وکړه په الله، او کافي بس دی الله کار جوړوونکی (ستا).

تفسير: يعنې هم همغسې چې تر نن پورې معمول وو، وروسته له دې نه هم تل له يوه الله څخه ويرېږه ! او د کافرانو او منافقانو خبره له سره مه منه ! که دغه ګرد سره يو ځای شي او خپل لاسونه سره يو کړي، او راز راز حيلې هم جوړې کړي، او تاسې ته د دروغو مطالبات او د ټګی مشورې در وړاندې کړي، او وغواړي چې خپل طرف ته دې متمايل کړي؛ نو تاسې قطعًا او اصلاً د هغوی پروا مه کوئ ! او بې د الله تعالی څخه د بل هيڅا څخه خوف او انديښنه مه کوه ! او د هم د هغه يوه الله خبره منه، او د هغه په دربار کې خپله غاړه ږده ! اګر که ګرد مخلوق سره يو ځای شي، او تاته راشي، د الله تعالی د احکامو په خلاف د هيڅا خبرو ته غوږ مه ږده ! الله تعالی پر ګردو احوالو ښه پوهېدونکی دی، الله تعالی په هر وخت کې هر حکم چې درکوي؛ په نهايت حکمت او مصلحت او خبردارۍ سره يې درکوي، او په هغه کې ستا اصلي خير او ښېګڼه ده، کله چې ته د الله تعالی پر احکامو ټګ وکړې، او د ده پر لوی ذات توکل او اعتماد و لرې؛ نو دی به ستا ګرد امور پخپل فضل او مرحمت او قدرت سره جوړ کړي، يواځې د الله تعالی ذات د توکل او اعتماد وړ دی، هر څوک چې قلبًا، خالصًا، او مخلصًا په ده پورې خپل ځان وتړي، نو دی به په بل چا يا بلې خوا ته له سره خپل زړه نشي تړلی، هو ! که دی د دوو زړونو خاوند وی؛ نو طبيعي ده چې هغه بل زړه به يې بلې خوا ته درومي، ليکن د هر يو انسان په ټټر (سينه) کې فقط همدغه يو زړه وي.

مَا جَعَلَ اللهُ لِرَجُلٍ مِّنْ قَلْبَيْنِ فِيْ جَوْفِهٖ ۚ وَمَا جَعَلَ اَزْوَاجَكُمُ الّٰٓـِٔيْ تُظٰهِرُوْنَ مِنْهُنَّ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ وَمَا جَعَلَ اَدْعِيَآءَكُمْ اَبْنَآءَكُمْ ۗ ذٰلِكُمْ قَوْلُكُمْ بِاَفْوَاهِكُمْ ۗ وَاللهُ يَقُوْلُ الْحَقَّ وَهُوَ يَهْدِي السَّبِيْلَ ﴿۴﴾

نه دي پيدا کړي الله لپاره د هيڅ سړي دوه زړونه په دننه د ده کې، او نه دي ګرځولي (الله) ښځې ستاسې هغه چې ظهار کوئ تاسې له هغو څخه؛ ميندې ستاسې، او نه دي ګرځولي (الله) هغه څوک چې پر ځويتوب نيولي دي تاسې (ځامن بلل شوي ستاسې)؛ (واقعي) ځامن ستاسې، دغه (درې مذکوره خبرې چټي ـ بېکاره) خبرې ستاسې دي په خولو ستاسې (چې هيڅ حقيقت نه لري)، او الله وايي حقه (رښتيا خبره) او همدغه الله ښيي لاره (سمه).

تفسير: يعنې ځنګه چې انسان په ټټر (سينه) کې دوه زړونه نه لري؛ همداسې په حقيقت کې يو انسان يوه ميندې يا دوه پلرونه هم نه لري، د جاهليت په زمانه کې به که کوم سړي خپله ښځه مور وبلله؛ نو پخپل ګرد عمر کې به له هغې سره نه يوځای کېده، ګواکې دوی به داسې ګڼل چې په همدغه لفظ سره هغه ښځه د ده د حقيقي مور په شان وګرځېده، که چا ته به يې د خپل ځوی يا د لور نسبت کاوه؛ نو هغه به يې واقعًا خپل اولاد ګاڼه، او د پلارتوب او ځوی توب ګرد احکام به پر هغو مترتّب کېدل، عظيم الشأن قرآن د دغې مصنوعي او لفظي تعلّق له حقيقي او فطري تعلّق څخه د جلا کولو لپاره د دغو رسومو او مفروضاتو په ډېر تشديد او تهديد سره ترديد وکړ، او دغه يې ښکاره کړه چې که څوک خپلې ښځې ته مور ووايي؛ په دغه تش ويلو سره هغه د ده واقعي مور نه ګرځي، که نه د دغې خبرې له منلو څخه دا لازمېږي چې دغه سړی د دوو ښځو له ګېډو څخه پيدا شوی دی، يوه هغه چې دی يې ځېږولی دی، او دويمه دغه چې دی ورته مور وايي، په دغه صورت سره که څوک زيد خپل ځوی وبولي؛ نو د زيد يو پلار خو لا له پخوا څخه موجود وو، چې دی د هغه له نطفې څخه پيدا شوی دی، نو آيا د واقعيت له مخې دغه خبره ومنله شي چې زيد د دوو پلرونو څخه بېل بېل پيدا شوی دی، لکه چې داسې نه ده، نو د حقيقي مور او پلار او اولاد احکام پر دوی باندې نشي جاري کېدی، لکه چې خپلې ښځې ته د مور ويلو حکم د (تحريم) په سورت کې راځي، او د متبني (ځوی بللو) حکم وروسته له دې نه راځي، له دغو دواړو خبرو سره يې دغه درېمه خبره د تمهيد او تشريح په ډول هم واوروله، چې داسې ډېرې خبرې له ژبې او خولې څخه راووځي، چې په واقع کې حقيقت او واقعيت نه لري، لکه چې کوم غير مستقل مزاج يا دوه رګه انسان يا کوم قوي الحفظ او قوي القلب سړی يا داسې چا ته چې په يوه وخت کې د دوو مختلفو شيانو په طرف متوجه کېدی شي؛ داسې وايي چې دی د دوو زړونو خاوند دی، حال دا چې که څوک يې ټټر ورڅيرې کړي او ويې ګوري؛ نو هغه به ضرور هم هغه يو زړه لري، همداسې پر خپلې مور سربېره بله ښځه مور بلل، يا برسېره پر پلار بل کوم سړی پلار نيول، يا له خپل ځوی څخه پرته بل کوم هلك ته خپل ځوی ويل په واقع کې په دغو ګردو کې قطعًا نسبت نه ثابتېږي، نو ځکه نه ښايي چې د حقيقي او مصنوعي تعلّقاتو په منځ کې ګډون او خلط وکړی شي.

ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ هُوَ أَقْسَطُ عِنْدَ اللَّهِ ۚ

وبولئ تاسې دغه (ادعياء او منسوب) پلرونو د دوی ته، دغه (نسبت د دوی پلرونو د دوی ته) ډېر برابر (او غوره) دی په نزد د الله.

تفسير: يعنې ښه او د انصاف خبره خو دا ده چې د هر سړي نسبت د ده حقيقي پلار ته وکړ شي، که کوم سړی کوم هلك خپل ځوی وبولي (متبني يې وګرځي)؛ نو هغه د ده حقيقي پلار نشي کېدی، د اسلام په ابتداء کې رسول الله صلى الله عليه وسلم زيد بن حارثه آزاد کړ، او خپل متبنّي يې وګرځاوه، لکه چې سم له دستوره به خلقو هغه ته «زيد بن محمد صلى الله عليه وسلم» ويل، کله چې دغه آيات نازل شول؛ ګردو خلقو «زيد بن حارثه» ورته ويل.

فَإِنْ لَمْ تَعْلَمُوا آبَاءَهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ ۚ وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ فِيمَا أَخْطَأْتُمْ بِهِ وَلَٰكِنْ مَا تَعَمَّدَتْ قُلُوبُكُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ۝

پس که نه پېژنئ تاسې (ای مؤمنانو !) پلرونه د دوی؛ پس دوی ورونه ستاسې دي په دين کې او دوستان ستاسې دي (په دين کې)، او نشته پر تاسې (هيڅ) ګناه په هغه شي کې چې خطا شوي يئ تاسې په کې (لکه چې وايئ زيد بن محمد) وليکن شته ګناه په هغه شي کې چې قصد يې وکړي زړونه ستاسې، او دی الله ښه بخښونکی د (خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: یعنې که یې پلار نه وي معلوم؛ نو په هر حال ستاسې ورور او دیني ملګری خو دی، نو په همدغو القابو سره یې یادوئ ! لکه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم «زید بن حارثه» ته ویل: «أنت أخونا ومولانا»، که په هېره یا ناپوهی یا غلطۍ سره یې وویل چې: فلانی د فلاني ځوی؛ نو دغه معاف دی، د خطا او نسیان ګناه په هیڅ شي کې نشته، په دغه کې هم که الله تعالی اراده وکړي؛ نو بخښي یې.

اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ وَاَزْوَاجُهٗٓ اُمَّهٰتُهُمْ ؕ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ فِيْ كِتٰبِ اللّٰهِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُهٰجِرِيْنَ اِلَّآ اَنْ تَفْعَلُوْٓا اِلٰٓى اَوْلِيٰٓئِكُمْ مَّعْرُوْفًا ؕ كَانَ ذٰلِكَ فِي الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا ۝

(محمد د الله) نبي ډېر حقدار دی پر مؤمنانو له نفسونو د دوی، او ښځې د دغه (نبيّ الله) میندې د دوی دي (تعظیمًا او تحریمًا)، او خاوندان د خپلوۍ ځینې د دوی ډېر وړ دي پر ځینو نورو (په میراث کې) په کتاب (حکم) د الله کې له مؤمنینو (انصارو) او له مهاجرینو، مګر خو دا چې وکړئ (پخپل ژوند کې) له دوستانو خپلو سره څه احسان (یا د دوی لپاره وصیت وکړئ په دریمه یا لږ له هغې)، دی دغه (میراث په ایمان او په هجرت) په کتاب(قرآن یا لوح محفوظ) کې لیکلی شوی.

تفسیر: که په غور سره ولیدل شي؛ د مؤمنانو په حق کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د پلار په شان دی، بلکه له پلار څخه هم په مراتبو ډېر زیات دی، نو دغه به بیخي په ځای او صحیح وي، لکه چې د ابو داود په سنن کې د «إنما أنا بمنزلة الوالد» الحدیث، او د «أبيّ بن کعب» او نورو په قرائتونو کې د ﴿اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ﴾ آیت او د «وهو أبٌ لهم» جمله دا حقیقت څرګندوي، که د پلار په تعلّق کې فکر وکړئ؛ نو د هغه حاصل همدا راوځي چې د ځوی جسماني وجود د پلار له جسمه راوتلی دی، او د پلار طبیعي شفقت او تربیت له نورو څخه زیات دی، لیکن آیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم تعلّق د ده له امّت سره له دې نه لږ دی؟ یقینًا د محمدي امّت ایماني او روحاني تربیت د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لوی روحانیت یوه پلوشه او د هغه سیوری دی، او هغه شفقت او تربیت چې د نبي صلی الله علیه وسلم څخه څرګند (ښکاره) شوی دی، د مور او پلار له طرفه لا څه بلکه په ټولو مخلوقاتو کې د هغه نمونه نشي موندلی.

د همدغو حقائقو په ملحوظ په احادیثو کې راغلي دي: «هیڅ یو له تاسې نشي مؤمن کېدی څو د ده په نزد زه له پلار او ځوی او نورو ګردو انسانانو بلکه د ده له خپله ځانه څخه هم ډېر زیات ګران او محبوب نه شم».

﴿وَاَزْوَاجُهٗٓ اُمَّهٰتُهُمْ﴾ «او ښځې د نبي میندې د دوی دي»، یعنې ستاسې دیني میندې دي، په تعظیم او احترام او په ځینو نورو احکامو کې چې د هغوی لپاره د شریعت له مخې ثابت شوي وي، نه په ټولو احکامو کې.

﴿وَاُولُوا الْاَرْحَامِ﴾ «او خاوندانو د خپلوۍ ځینې د دوی ډېر لایق دي په ځینو نورو الخ»، یعنې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دوی خپل وطن پرېښی دی، او له خپلو دوستانو او خپلوانو څنې بېل شوي دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم د مهاجرینو او د منورې مدینې د انصارو په منځ کې د دوو تنو په منځ کې دیني اخوّت او اسلامي وروري تړلې وه، وروسته له دې چې د مهاجرینو نور خپلوان مسلمانان شول؛ نو دلته یې داسې وویل چې: د نسبي خپلوۍ رعایت په دغه مؤاخات ړومبی او مقدّم دی، ښایي چې میراث او نور شیان د نسبي قرابت په اساس تقسیم کړل شي، هو ! ښایي چې ښه سلوك او احسان دې له هغو ملګرو څخه هم منع نه شي.

﴿كَانَ ذٰلِكَ فِي الْكِتٰبِ مَسْطُوْرًا﴾ «دی دغه میراث او وصیت په کتاب: قرآن، لوح محفوظ کې لیکلی شوی»، یعنې په قرآن کې دغه حکم د تل لپاره جاري او نافذ دی، یا به په تورات کې هم وي، یا به له کتاب څخه لوح محفوظ مراد وي.

وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّينَ مِيثَاقَهُمْ وَمِنْكَ وَمِنْ نُوحٍ وَإِبْرَاهِيمَ وَمُوسَىٰ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۖ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا ۝

او یاد کړه (ای محمده !) کله چې واخیست مونږ له (ټولو) انبیاوو څخه عهد د دوی (په «ألستُ» کې، چې هم پخپله دده عبادت کوي، او هم دې نور څما عبادت ته رابولي) او (بالخاصه) له تانه او له نوح او (له) ابراهیم او (له) موسی او (له) عیسی څوی د مریمې نه (چې عبادت د الله کوئ)، او واخیست مونږ له دغو (ټولو انبیاوو) څخه (په قسم سره) عهد محکم.

تفسیر: یعني دغه قول او اقرار چې یو به د بل تایید او تصدیق کوي، او د دین په قائمولو او د الله تعالی د پیغام په رسولو کې به له سره هیڅ قسم نقص او قصور نه کوي، په «آل عمران» کې د دغه میثاق ذکر تېر شوی دی.

لِيَسْأَلَ الصَّادِقِينَ عَنْ صِدْقِهِمْ ۚ وَأَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا أَلِيمًا ۝

لپاره د دې چې وپوښتي (الله) له صادقانو څخه له صدق (رښتیا) د دوی، او (الله) تیار کړی دی لپاره د کافرانو عذاب دردناک.

تفسیر: یعني له قول او اقرار سره مطابق د انبیاوو پر ژبه یې خپل احکام خلقو ته ورسول، او د حجّت اتمام یې وفرمایه، بیا به له هر یوه څخه بېلې بېلې پوښتنې کوي، څو د صادقینو پر صداقت قائم پاتې کېدل ښکاره شي، او منکرینو ته د صدق پر انکار سزا ورکړه شي، وروسته له دې نه د «الأحزاب» د جنګ واقعه یادوي، چې د رښتین رسول الله صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلم او د رښتینو مؤمنینو په مقابل کې د دروغجنانو منافقانو او د منکرانو څه حال او احوال شو؟ او د دوی د ظاهري ثمراتو او نتائجو ذکر کوي.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرًا ۝

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو !) یاد کړئ تاسې نعمت د الله پر تاسې کله چې په (غزوه د احزاب کې) راغللې تاسې ته لښکرې (د کفّارو)؛ نو راولېږو مو پر دوی باد او داسې فوځونه (د ملائکو) چې (هیڅ) نه لیدلې تاسې دوی، او دی الله پر هغو (کارونو) چې کوئ یې تاسې ښه لیدونکی.

تفسیر: د هجرت په څلورم او پنځم کال کې د «بني نضیرو» یهودان له منورې مدینې څخه وویستل شول، چې ذکر یې د «الحشر» په سورت کې راځي، دغه فراري یهودان کور په کور او قوم په قوم وګرځېدل، او هغوی یې د اسلام او مسلمینو په خلاف ولمسول، او ګرد یې د مسلمانانو په خلاف جنګ ته مستعد او تیار کړل، او د «بني فزاره» او «غطفان» او د عربو د نورو قبائلو تقریبا (۱۲۰۰۰) دولس زره لښکر سره له پوره وسلو، سامان، تجهیزاتو او لوازمو د فتح او ظفر په نشو کې مست ورتوی شول، د «بني قُریظه وو» د یهودانو یوه ټینګه او کلکه کلا د مدینې منورې په شرقي جانب کې وه، دوی پخوا له دې نه له مسلمانانو سره معاهده تړلې وه، بالآخر دوی د نضیري یهودانو په ترغیب او ترهیب هغه معاهده ماته کړه، او د متعارضینو د امداد او معاونت لپاره د مسلمانانو په خلاف ودرېدل، د مسلمانانو عمومي جمعیت ټول (۳۰۰۰) درې زره تنه وو، چې په هغه کې یو لوی تعداد منافقان وو، چې د تکلیف او سختی په وخت کې به یې د دروغو بهانې جوړولې، او د جنګ له میدانه به یې ورو ورو خپل ځانونه ایستل، رسول الله صلی الله علیه وسلم په دغه

مورد کې له مسلمانانو سره مشوره وکړه، بالآخر د پارسي سلمان رضي الله تعالی عنه په مشوره د ښار په اطرافو کې په هغو ځایونو کې چې د کفّارو د تعرّض او د حملې اندېښنه وه؛ خندقونه وکنستل شو، د سختې یخنۍ وخت وو، غله هم ډېره قیمته او ډېره لږه پیدا کېده، د لوږې له سببه أصحابو رضي الله تعالی عنهم أجمعین او پخپله رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم هم پر خپلو ګېډو تیږې تړلې وې، مجاهدین پر دغې سختې ځمکې کې په کودال وهلو مشغول او لګیا وو، او په خپلو منځونو کې به یې په ډېر جوش او خروش سره داسې ویل:

نحــن الذیـن بایعـوا محمـدا علی الجهاد مـا بقینا أبـدا

بالمقابل ځمونږ د لوی سردار محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم سیّد الأبرار او أفضل الأخیار له طرفه به چې هغوی هم بالذات دخندق په کنستلو کې مشغول وو؛ د دوی ځواب داسې ویلی کېده:

اللهم لا عیش إلا عیش الآخرة فاغفر للأنصار و المهاجرة

کله چې خندق تیار شو؛ نو اسلامي مجاهدین د متعارضینو په مقابل کې په خپلو سنګرونو او مورچو کې ټینګ ودرېدل، تقریبًا تر پنځه ویشتو ورځو پورې دواړه فوځونه سره مخامخ پراته وو، او د دغو دواړو قومونو په منځ کې خندق حائل وو، سره له دې چې د کفّارو تعداد ډېر زیات وو، خو د دوی له لاسه ونشو چې له خندقه تېر او پر ښار عمومي هجوم راوړي، مګر له لرې ځنې به یې غشي ویشتل، او کله کله به د فریقینو مخصوص ځلمیان د مبارزې په ډګر کې هم سره وتل، د مشرکینو او د بني قریظه وو د یهودانو په منځ کې مسلمین د محصورینو حیثیت درلود، خو سره له هغه دوی ټولې ښځې او ووړکي د ښار په مضبوطو او محفوظو انګړونو کې خوندي کړل، او دوی پخپله په ډېر شجاعت او استقامت سره د ښار محافظت او مدافعت کاوه، بالآخره د «نعیم بن مسعود الأشجعي» رضي الله تعالی عنه د یوه عاقلانه او لطیف تدبیر په اثر د مشرکینو او د بني قریظه وو د یهودانو په منځ کې اختلاف او مشاجره واقع شوه، له بل طرفه د کفّارو په زړونو کې د الله تعالی د غیر مرئي فوځونو له لوري وېره او رُعب وغورځاوه شو، په همدغه ضمن په یوه شپه کې یوه سخته ویروونکې سیلۍ راوالوته، چې د هغې په اثر د دوی ټولې خیمې او کېږدۍ وشلېدلې، او له ځمکې ځخه وشکولی شوې، او ډېرې لرې ولوېدلې، د دوی ګرد څاروي او حیوانات توري شول، اورونه یې مړه او دیګونه او لوښي یې په بل مخ نسکور او ګرد سره مات او ګډوډ شول، شګې به په داسې شدّت سره الوتلې چې د دوی سترګې، خولې، پوزې او غوږونه ترې ډک پک شول، بالجمله د کفارو دغه عظیم الشأن لښکر چې تر (۲۴۰۰۰) تنو ځلمیانو پورې رسېدل؛ په تېښته او فرار مجبور شول، او ګرد نا امیده بېرته ستانه شول: ﴿وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا﴾ دغه جنګ ته د «أحزاب» یا د «خندق» جنګ وایي، د سخت برودت او سختو لوږو په وخت کې داسې خندق کنستل او د دغومره دښمنانو په مقابل کې په مېړانه سره ټینګ ودرېدل داسې اوضاع او حالات وو، چې د منافقانو د زړونو پټې خبرې یې ځرګندې کړې، او د مؤمنینو ثبات او استقامت په ښه شان سره تثبیت شو، په همدغه جنګ کې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې: وروسته له دې نه به بیا کفّار پر مونږ تعرّض نه کوي، بلکه بالعکس مونږ به پر هغو هجوم وروړو، لکه چې همداسې هم وشول.

إِذْ جَآءُوكُم مِّن فَوْقِكُمْ وَمِنْ أَسْفَلَ مِنكُمْ

(یاد کړئ) کله چې راغللې (لښکرې د کفّارو) تاسې ته له پاسه (جانبه) د تاسې، او له ښکته (جانبه) د تاسې.

تفسیر: یعنې د منورې مدینې په شرقي جانب چې جګ (وچت) دی، او له غربي جانبه چې ښکته دی.

وَإِذْ زَاغَتِ الْأَبْصَارُ وَبَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ وَتَظُنُّونَ بِاللَّهِ الظُّنُونَا ﴿١٠﴾

او کله چې کږې خړې شوې سترګې (له ډېرې وېرې)، او ورسېدل زړونه چنغړکو ته (له ډېره خوفه)، او ګمانونه کول تاسو پر الله راز راز ګمانونه.

**تفسیر:** یعنې له ډېره دهشته او حیرته سترګې رډې بډې پاتې شوې، او د خلقو اشکال او بڼې والوتې، د دوستۍ او خپلوۍ مدّعیانو به ځانونه پټول، او له سترګو ځنې به یې ځان ګوښې کاوه، او ورسېدل زړونه چنغړکو بیخونو د مریو ته، یعنې له ډېر خوف او هراسه زړونه لړزېدل، او داسې زور او شدّت سره له خپله ځایه غورځېدل، لکه چې د ستوني له لارې د باندې راوتل، او ګمانونه وکړل تاسو پر الله تعالی راز راز ګمانونه، یعنې یو به په یو شي پوهېده، او بل به بل شي اټکلاوه، مسلمانانو به داسې ګڼل چې دا ځلې یو بل قسم سخت امتحان راباندې راغلی دی، ګورو چې مونږ ته په دغه آزموینه کې څه راپېښیږي؟ ناقص الایمان کسانو به داسې ګڼل چې اوس له دغې پېښې څخه ځمونږ ژوندي وتل سخت او مشکل دي، د منافقینو له احوالو خو له سره پوښتنه مه کوئ، چې هغوی په څه حال کې وو؟ د منافقینو مقولې وروسته راځي:

هُنَالِكَ ابْتُلِيَ الْمُؤْمِنُونَ وَزُلْزِلُوا زِلْزَالًا شَدِيدًا ﴿١١﴾

په دغه وخت کې وازمویلی شول مؤمنان، او وخوځولی شول په خوځولو سختو سره (له ډېرې وېرې).

**تفسیر:** رسول الله صلی الله علیه وسلم «حُذیفة رضي الله تعالی عنه» ولېږه، څو د دښمن صحیح احوال راوړي، د دغې واقعې مفصله قصه دې په حدیث کې ولوستله شي، څو د دغه تردّد او تذبذب او اندېښنې د کیفیت اندازه ترې وشي، دلته د هغې د ترجمې ګنجایش نشته.

وَإِذْ يَقُولُ الْمُنَافِقُونَ وَالَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا ﴿١٢﴾

او (یاد کړه هغه وخت) کله چې وویل منافقانو او هغو کسانو چې په زړونو د دوی کې مرض (د نفاق) وو چې: نه ده وعده کړې له مونږ سره الله او د هغه رسول مګر په غرور تېرایستلو سره.

**تفسیر:** ځینو منافقینو به داسې ویل چې: محمد صلی الله علیه وسلم به داسې دعوې کولې چې ځما دین تر مشرقه او مغربه خور او منشوریږي، او د روم، پارس او صنعا بنګلې او ماڼۍ ماته راکړی شوي دي، حال دا چې اوس مسلمانان د اودس د تجدید لپاره هم له خپلو سنګرونو څخه نشي وتلی، هغه وعدې چېرې لاړې؟ شاه صاحب فرمایي: «مسلمانانو ته ښایي چې اوس هم د ناامیدۍ په وخت کې د بې ایمانۍ خبرې ونه کړي !».

وَإِذْ قَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ يَا أَهْلَ يَثْرِبَ

او کله چې وویل یوې طائفې له دغو (منافقانو) چې ای اهل د یثربه (مدینې).

**تفسیر:** «یَثرِب» د طیبې مدینې قدیمي نوم وو، کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه ځای ته تشریف راوړ؛ د یثرب نوم په «مدینة النبي» سره تبدیل شو.

لَا مُقَامَ لَكُمْ فَارْجِعُوا ۚ وَيَسْتَأْذِنُ فَرِيقٌ مِّنْهُمُ النَّبِيَّ يَقُولُونَ إِنَّ بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ ۛ وَمَا هِيَ بِعَوْرَةٍ ۖ إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ﴿١٣﴾

نشته ځای (د هستوګنې) تاسې ته؛ پس بېرته وګرځئ، او اذن (د بېرته تللو) غواړي يو فريق ډله له دوی له نبي، وايي چې: بېشکه کورونه ځمونږ تش پراته دي (له سړيو)، حال دا چې نه دي تش پراته کورونه د دوی، نه لري اراده (په دغه تګ سره) مګر د تېښتې (له جنګه).

تفسير: يعنې ګرد عرب ځمونږ دښمنان شول، او ځمونږ لپاره هيچېرې د توقّف او د هستوګنې ځای پاتې نشو، ټول له اسلامي لښکر جلا او خپلو کورونو ته لاړ شئ! رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د اسلامي مجاهدينو د باندې ولاړ وو، او د ښار د مضبوطو او محفوظو انګړونو په مزيد تأمين او تحکيم او په هغو کې د ښځو او ووړکو په خوندي کولو او ځای په ځايولو کې مشغول وو، په دغه وخت کې به دغو منافقينو داسې پلمې او بهانې سره کولې؛ چې ځمونږ کورونه د باندې په ډاګ ميدان کې پراته دي، مونږ له دې نه ويرېږو نه چې غله ځمونږ په کورونو ولوېږي، او ځمونږ ګرد مال او شته به تالا او لوټ يوسي، دغه محض د دروغو بهانې او پلمې وې، او له داسې خبرو څخه د دوی مقصود دا وو چې په کوم چل او فرېب سره خپل ځان د جنګ له ميدانه وباسي، لکه چې هومره سړيو چې له محمد صلی الله عليه وسلم څخه اجازه وغوښتله؛ دوی هغو ګردو ته اجازه ورکړه، او د مرخصينو د تکثير او تزييد هيڅ پروا يې ونه کړه، له ځينو روايتونو څخه داسې معلومېږي چې فقط درې سوه نفوس له دوی سره باقي پاتې شول.

وَلَوْ دُخِلَتْ عَلَيْهِم مِّنْ أَقْطَارِهَا ثُمَّ سُئِلُوا الْفِتْنَةَ لَآتَوْهَا وَمَا تَلَبَّثُوا بِهَا إِلَّا يَسِيرًا ﴿١٤﴾

او که راننه ايستی شي پر دوی (دغه کفّار په مدينه کې او ترې چاپېر شي) له اطرافو د دغې (مدينې)، بيا طلب کړل شي ترې فتنه (شرک يا له مسلمانانو سره جنګ)؛ نو خامخا رابه شي دوی هغې (فتنې) ته، او ځنډ به ونه وکړي په دغې (قبول د فتنې) کې مګر لږ.

تفسير: يعنې منافقان د دروغو حيلې او بهانې جوړوي، فرض يې کړئ که دغه کسان په ښار کې هم وی، او کوم يو دښمن د دې خوا يا د هغې خوا راشي، يا پر دوی ورتوی شي، او له دوی څخه داسې يوه مطالبه وکړي، چې د اسلام دغه دين پرېږدئ، چې تاسې ظاهرا هغه منلی دی، يا ورته وويل شي چې: راځئ چې له مسلمانانو سره وجنګېږو، نو دوی سمدلاسه د جنګ او فتنې او فساد اچولو لپاره ولاړ او تيارېږي، او په دغه وخت کې د دوی دغه مکر او فرېب او دروغ په ښکاره ډول سره ظاهرېږي، ځکه چې علی الفور دوی د کفّارو د هغو مطالباتو د تعميل لپاره خپلې ملاوې تړي، او د دوی مرستې او تاييد ته چټ پټ ودرېږي، نه به د خپلو کورونو د خالي کېدو او بې سر پرستۍ او د ساتلو عذر وړاندې کوي، او نه د هغو د غلا او لوټېدلو او په تاراج تللو څخه څه انديښنه کوي، ماسوا له هغه توقّفه چې په دغو مذاکراتو او د وسلې په اخيستلو کې واقع شوی دی.

وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ ۚ وَكَانَ عَهْدُ اللَّهِ مَسْئُولًا ﴿١٥﴾

او خامخا په تحقيق وو دوی چې وعده يې کړې وه له الله سره پخوا له دې نه چې وبه نه ګرځوي (په جنګ کې) شاوې خپلې (او نه به تښتي)، او دی عهد د الله پوښتېدلی شوی.

تفسير: شاه صاحب (رحمه الله) ليکي چې: «وروسته د احد له جنګه منافقانو اقرار کړی وو، چې بيا به مونږ داسې يو حرکت ونه کړو»، د دغه مخالفت پوښتنه به الله تعالی له دوی څخه وکړي، چې ستاسې هغه قول او اقرار چېرې لاړ؟.

قُلْ لَّنْ يَّنْفَعَكُمُ الْفِرَارُ اِنْ فَرَرْتُمْ مِّنَ الْمَوْتِ اَوِ الْقَتْلِ وَاِذًا لَّا تُمَتَّعُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۶﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې له سره به نفعه نه رسوي تاسې ته تېښته که چېرې وتښتئ تاسې له مرګه يا له قتله، او کله چې وتښتېدئ؛ نو ژوندي به پاتې نه کړی شئ مګر لږ (مدّت).

تفسیر: يعنې د هر چا په قسمت کې چې مرګ دی؛ هغه هيڅېرې په تښتېدلو سره له مرګه ځان نشي ژغورلی، د الله تعالی قضا هر چېرې انسان ته رسيږي، او که اوس مرګ ستاسې لپاره نه وي مقدّر؛ نو له ميدانه څخه تښتېدل بېکاره دي، آيا دوی د جنګ په ميدان کې ټول وژل کيږي؟ او فرض يې کړئ که د جنګ له ميدان وتښتئ؛ نو بيا به له مرګه مأمون يئ؟ آيا دغه مأمونيت به تر څو پورې وي؟ بالآخر مرګ خو راتلونکی دی، که اوس رانشي؛ نو څه موده وروسته خو خامخا راتلونکی دی، خو معلوم نه دی چې په څومره ذلّت او خوارۍ سره به راځي؟.

قُلْ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَعْصِمُكُمْ مِّنَ اللّٰهِ اِنْ اَرَادَ بِكُمْ سُوْٓءًا اَوْ اَرَادَ بِكُمْ رَحْمَةً ۚ وَلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) څوک دی هغه (ذات) چې وساتي تاسې له (عذابه) د الله که چېرې وفرمايي الله په تاسې باندې د بدۍ (هزيمت)، يا اراده وفرمايي په تاسې باندې د رحمت، نصرت، او نه به مومي دوی خپلو ځانونو ته بې له الله کوم دوست (نافع) او نه کوم مددګار (دافع د ضرر).

تفسیر: يعنې د الله تعالی اراده هيڅ يو زور او طاقت نشي ګرځولی، نه کومه حيله او تدبير د هغه په مقابل کې کار کولی شي، انسان ته لازم دي چې پر پاک الله توکل وکړي، او په هر حال د الله تعالی د مرضۍ غوښتونکی وي، که نه د دنيا نيکي يا بدي، سختي يا نرمي خو يقيناً رسېدونکي دي، نو بيا د الله تعالی د احکامو په تعميل او د ده په لار کې به ولې انسان خوف، وېره او ډار له خپله ځانه ښکاره کړي؟، او په لازمه وخت کې ولې ځان ترې بېل او لرې کړي؟، او په لوی لاس خپل عاقبت خراب کړي، او له تکليفه څخه هم خپل ځان خلاص نشي کړی.

قَدْ يَعْلَمُ اللّٰهُ الْمُعَوِّقِيْنَ مِنْكُمْ وَالْقَآئِلِيْنَ لِاِخْوَانِهِمْ هَلُمَّ اِلَيْنَا ۚ وَلَا يَأْتُوْنَ الْبَأْسَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿۱۸﴾

په تحقيق ښه معلوم دي الله ته منع کوونکي (له جهاده) له تاسې او ويونکي وروڼو خپلو ته (چې) راشئ څمونږ په لوري (چې آرام وکړئ)، او نه راځي دوی جنګ ته مګر لږ (کله نه کله).

تفسیر: يعنې د ريا له سببه يا له شرم او ننګ او د نورو په ترهيب او ترغيب کله کله د جنګ ميدان ته راځي، او د نورو حقيقي مجاهدينو په څنګ کې ودريږي، که نه عموماً دوی پخپلو کورونو کې او په خپل عيش او عشرت، مزو او چړچو کې مشغوليږي، او خپلو نورو عزيزانو او خپلوانو ته چې صادق مسلمانان دي؛ هم وايي چې جهاد ته مه ځئ ! او دوی جهاد ته له وتلو څخه منع کوي.

اَشِحَّةً عَلَيْكُمْ ۖ

بخيلان دي (په اعانت له تاسې سره او انفاق) پر تاسې.

تفسیر: يعنې د مسلمانانو د امداد او معاونت څخه ځان ساتي، او د دوی له هر قسم همدردۍ او خير غوښتلو او خير رسولو څني بخل کوي، هو ! که غنيمت مواقع راشي؛ نو د ډېر حرص او طمع لامله غواړي چې بل هيڅا ته دې هيڅ

شي ورنه کړه شي، او دغه ګرد مال او غنيمت دې يوائې ځمونږ برخه شي، او په همدغه اميد او هيله ځينې په جنګونو کې هم حسب الظاهر شرکت کوي.

فَإِذَا جَآءَ الْخَوْفُ رَأَيْتَهُمْ يَنظُرُونَ إِلَيْكَ تَدُورُ أَعْيُنُهُمْ كَالَّذِى يُغْشَىٰ عَلَيْهِ مِنَ الْمَوْتِ فَإِذَا ذَهَبَ الْخَوْفُ سَلَقُوكُم بِأَلْسِنَةٍ حِدَادٍ أَشِحَّةً عَلَى الْخَيْرِ

پس کله چې راشي وېره (د دښمن)؛ نو وبه وينې ته دوی ګوري به دوی تاته (وېريدونکي) چې چاپېر به چورلي (ګاتې د) سترګو د دوی په شان د هغه انسان چې بيهوشي راوستلې شوې وي پر هغه له (وجه د سکراتو د) مرګه، پس بيا کله چې لاړه شي دغه وېره (او تول شي غنائم)؛ نو ضرر دررسوي دوی تاسې ته په ژبو تېرو سره په دغه حال چې بخيلان (حارصان) وي په خير (او لاس اچوي په غنيمت).

تفسير: يعنې د سختۍ او تنګسۍ په وخت کې د رفاقت څخه ځانونه بېرته واپس کوي، او له ډېرې وېرې يې ساه راخيژي، وروسته له برې او فتح راځي، او له خپل ځانه خبرې جوړوي او خپل شجاعت او مېړانه ښکاره کوي، او له ډېر حرص او طمعې د غنيمت پر اموالو پړمخي نسکور لوېږي، يا يې دا مطلب چې د اسلام او مسلمانانو پر خلاف په طعنو او تشنيعو کې خوله سپړي او ژبه کوي.

أُولَٰئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا فَأَحْبَطَ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿١٩﴾

دغه (کسان د جنګ ګيدړان او د ولجې زمريان) ايمان يې نه دی راوړی (په اخلاص سره) پس خراب (باطل) کړل الله عملونه د دوی، او دی دغه (ابطال د اعمالو) پر الله آسان.

تفسير: يعنې تر څو پر الله تعالی او رسول الله ايمان رانه وړي؛ د دوی هيڅ يو عمل نشي مقبول واقع کېدی.

يَحْسَبُونَ الْأَحْزَابَ لَمْ يَذْهَبُوا وَإِن يَأْتِ الْأَحْزَابُ يَوَدُّوا لَوْ أَنَّهُم بَادُونَ فِى الْأَعْرَابِ يَسْأَلُونَ عَنْ أَنبَآئِكُمْ

ګمان کوي (دغه منافقان) پر لښکرو (د کفّارو) چې نه دي تللي (بېرته په ماتې)، او که چېرته بيا راشي لښکر د (کفّارو جنګ ته)؛ نو دوست ګڼي (منافقان) دا چې کاشکې دوی اوسيدونکي وي په (لريو کليو د) اعرابو کې، چې پوښتنې به يې کولې (له لرې) له (احوالو) خبرونو ستاسې.

تفسير: يعنې د کفارو لښکرې ناکامه بېرته لاړې، ليکن دغه وېريدونکي منافقان لا تر اوسه هم نه دي متيقن چې هغوی ماتې موندلې ده، او فرض يې کړئ! که د کفارو افواج بيا بېرته وګرځي، او پر مسلمانانو حمله او يرغل وکړي؛ نو د دوی همدغه هيله او تمنّا وه که وروسته له دې نه د جنګ تر ختمه پورې بيخي په ښار کې هم ونه اوسيږي، او چېرته کوم کلي ته ولاړ شي، او هم هلته لرې ناست نندارې وکړي، او له تلونکيو او راتلونکيو څخه پوښتنې وکړي، چې مسلمانان څه حال لري؟ او د جنګ نخچه او وضعيت څرنګه دی؟.

وَلَوْ كَانُوا فِيكُم مَّا قَاتَلُوا إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢٠﴾

او که چېرې وئ (دغه منافقان) په تاسې کې نو جنګ به يې نه وو کړی دوی مګر لږ (لپاره د ريا).

تفسیر: یعنې د خولې پر خبرو کې ستاسې خير غوښتنه په ظاهري ډول سره ښكاره كوي، او په جنګ كې زيات كار نه كوي، او تش د مجبوريت او ضرورت لامله چې نوم يې وشي په جنګ كې شركت كوي.

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا ﴿٢١﴾

خامخا په تحقيق ده تاسې ته په رسول الله كې اقتداء غوره نېكه لپاره د هغه چا چې وي دى چې داريږي د الله (او اميد لري د رضاء او د لقاء يې) او د ورځې وروستنى (د قيامت)، او يادوي الله ډېر (هم په خوله، هم په زړه، هم په راحت، هم په زحمت).

تفسیر: یعنې رسول الله ته وګورئ! چې په دغو سختيو كې څرنګه ثبات لري، حال دا چې له ګردو څنې د زياتې انديښنې او فكر زور پر دوى لوېږي، مګر امكان نه لري چې لږ څه د دوى په استقامت كې تزلزل واقع شي، هغه خلق چې د الله تعالى د رضاء او لقاء هيله من او د آخرت د ثواب د حصول اميدوار دي، او په كثرت سره د الله تعالى په ذكر او ياد كې مشغول دي؛ د هغوى لپاره د رسول الله ذات ډېر ښه نمونه ده، ښايي چې دوى په عباداتو، معاملاتو، مأكولاتو، مشروباتو، ملبوساتو، بلكه په هر حركت او سكون او ناسته او ولاړه كې د دغه جامع الصفات ذات د قدم پر نقش حركت وكړي! او په همت او شجاعت د دوى د عمل د طرز متابعت وكړي! او په ښه شان سره يې زده كړي!.

وَلَمَّا رَأَى الْمُؤْمِنُونَ الْأَحْزَابَ قَالُوا هَٰذَا مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَصَدَقَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ ۚ وَمَا زَادَهُمْ إِلَّا إِيمَانًا وَتَسْلِيمًا ﴿٢٢﴾

او كله چې وليدل مؤمنانو لښكرې (د كفّارو) نو وويل (مؤمنانو) دا هغه دي چې وعده كړې ده له مونږ سره الله او رسول د دغه (الله د نصرت)، او رښتيا ويلي وو الله او رسول د (الله په وعده كې)، او زيات نه كړ دغو (لښكرو د كفارو) مؤمنانو ته مګر ايمان او تسليم (احكامو د الله ته).

تفسیر: یعنې كله چې پخو مسلمانانو وليدل چې د كفارو افواج سره يو ځاى شوي دي، او له څلورو خواوو څخه پر مونږ راتوېږي؛ نو د دې په ځاى چې وارخطا شي، د دوى يقين او باور د الله تعالى او د رسول الله پر وعدو لا زيات شو، او دوى به داسې ويل چې: دغه خو هم هغه منظره ده چې د هغه خبر الله تعالى او رسول الله پخوا له دې نه وركړى وو، او د ده په متعلق د الله تعالى وعده لا له پخوا څخه شوې وه، لكه چې (د البقرې سورت په (۲۶) ركوع (۲۱۴) آيت كې) يې فرمايلي دي: ﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُم مَّسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّىٰ يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَىٰ نَصْرُ اللَّهِ ۗ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ﴾ او (د ص د سورت په (۱) ركوع (۱۱) آيت (۲۳) جزء كې يې چې مكي دى) فرمايلي دي: ﴿جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ﴾.

مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ۖ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ ۖ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا ﴿٢٣﴾

ځينې له مؤمنانو څخه (داسې) سړي دي چې رښتيا كړې يې ده هغه خبره چې عهد كړى وو دوى له الله سره په هغې باندې (چې ثبات، استقامت في القتال دى)، پس ځينې له دوى هغه دي چې تر سره يې كړ نذر خپل (چې مړ شو يا شهيد)، او ځينې له دوى هغه دي چې انتظار كوي (دغه مرګ يا شهادت ته)، او بدل يې نه كړ (عهد خپل يو ذره هم) په بدلولو سره.

تفسير: يعني هغه وعده چې منافقينو کړې وه، او د هغې ذکر په پخواني رکوع کې په دغو الفاظو سره شوی وو: ﴿وَلَقَدْ كَانُوا عَاهَدُوا اللَّهَ مِن قَبْلُ لَا يُوَلُّونَ الْأَدْبَارَ﴾ هغه يې ماته کړه، او په ډېرې بې‌حيايي او بې شرمۍ سره د جنګ له ميدانه په شَنګ شول، پر عکس د دوی ډېر زيات داسې پاخه مسلمانان هم شته چې هغو خپل عهد او پيمان په صداقت او امانت پای ته ورسوه، او د ډېرو زياتو سختيو په اوقاتو کې هم د دين له حمايته او د رسول الله صلی الله عليه وسلم له نصرته، او د مسلمانانو له رفاقته يو قدم هم بېرته پاتې نه شول، کوم عهد او پيمان او ژبه چې دوی د الله جل جلاله او رسول الله صلی الله عليه وسلم سره کړې وه؛ د غره په شان پرې ټينګ ولاړ وو، له دوی نه خو ځينې کسان هغه دي چې خپله ذمه واري يې پوره کړې وه، يعنې په جهاد کې د شهادت په درجه نائل شوي دي، لکه د «بدر» او «احد» شهداء چې په دوی کې د أنس بن النضر رضي الله تعالی عنه قصه ډېره مشهوره ده، او زيات مسلمانان هغه دي چې په ډېره مينه او اشتياق سره د في سبيل الله موت په انتظار کې دي، په هر حال دغه دواړه قسمه مسلمانان چې د الله په لاره کې يې ځان قربان کړی دی، يا د شهادت مشتاق دي؛ د خپلو عهدو او پيمانونو پوره حفاظت يې کړی دی، او له خپلو خبرو څخه يې د يوې ذرې په اندازه هم تجاوز نه دی کړی.

لِّيَجْزِيَ اللَّهُ الصَّادِقِينَ بِصِدْقِهِمْ وَيُعَذِّبَ الْمُنَافِقِينَ إِن شَاءَ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٤﴾

لپاره د دې چې جزاء ورکړي الله رښتينو ته په (سبب د) رښتيني د دوی، او په عذاب به کړي منافقان که اراده وفرمايي (د تعذيب يې)، يا رجوع په رحمت سره وکړي پر دوی (چې ايمان راوړي)، بېشکه چې الله دی ښه بخښونکی (د خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: يعنې هغو ته چې په خپل عهد باندې ټينګ ولاړ وو، او په خپل قول او اقرار کې رښتين پاتې شوي دي، پر دغه رښتيا ټينګ پاتې کېدلو بدل به وررسيږي، بد عهد او منافقانو ته که اراده وفرمايي؛ سزا ورکوي، او که اراده وفرمايي؛ د توبې توفيق ور په برخه کوي او معافوي يې، او دغه د الله تعالی له مهربانۍ څخه بعيد نه دی.

وَرَدَّ اللَّهُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِغَيْظِهِمْ لَمْ يَنَالُوا خَيْرًا

او بېرته وشړل الله (له مدينې نه) هغه کسان چې کافران شوي وو (په ماتې بې له جنګه) سره له قهره خپله (ډک زړونه) چې ويې نه موند هيڅ خير (بری پر مؤمنانو).

تفسير: يعنې د کفارو افواجو سره له ذلت او ناکامۍ په دغه حال کې چې له ډېره قهره او غوصې به يې غاښونه چيچل؛ د جنګ ميدان پرېښود، او بېرته خائب او خاسر خپلو کورونو ته لاړل، هو ! د عمرو بن عبدوُدّ په شان د کفّارو ډېر نوميالي چې خلقو به ده ته د يو زرو سورو په شان اهميت ورکاوه؛ په دغه جنګ کې د سيدنا علي رضي الله عنه په توره ووژل شو.

وَكَفَى اللَّهُ الْمُؤْمِنِينَ الْقِتَالَ ۚ وَكَانَ اللَّهُ قَوِيًّا عَزِيزًا ﴿٢٥﴾

او کفايت وکړ الله مؤمنانو ته د جنګ کولو (په امداد د پرښتو)، او دی الله قوي ښه زورور (په انفاذ د احکامو) ډېر زبردست (په هر چا او په هر شي).

تفسير: يعنې له مسلمانانو سره د عمومي جنګ او جګړې وار ونه رسېد، الله تعالی په خپل قدرت سره ډېره سخته سيلۍ پر دوی مسلطه کړه، او د پرښتو لښکر يې ورولېږه، او داسې آثار يې پيدا کړل چې کفار په خپل سر وارخطا او پرېشان شول، او فرار يې پر قرار اختيار کړ، د پاک الله د زورور او زبردست قوّت په مقابل کې ځوک ودرېدی شي !؟.

وَأَنزَلَ الَّذِينَ ظَاهَرُوهُم مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مِن صَيَاصِيهِمْ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ فَرِيقًا تَقْتُلُونَ وَتَأْسِرُونَ فَرِيقًا ﴿۲۶﴾

او راکوز کړل (الله) هغه کسان چې کومک یې کړی وو له دغو (ډلو د احزابو) سره له اهل د کتابه (چې بني قریظه وو) له کلاګانو د دوی، او وغورځوله (الله) په زړونو د دوی کې ویره (د رسول الله او د مؤمنانو)، یوه ډله وژله تاسې، او بندي کوله به تاسې بله ډله.

تفسیر: دغه د بني قُریظه وو یهودان دي چې د منورې مدینې په شرقي جانب کې د دوی یوه ټینګه او مضبوطه کلا وه، او دوی لا له پخوا له مسلمانانو سره د روغې معاهده درلوده، لیکن دغه د احزابو په جنګ کې (د حُیي بن أخطب) په اغواء او لمسونه دوی هغه ګرد معاهدات نقض کړل، او د مشرکینو په امداد ودربدل، کله چې د قریشو کُفّار عاجز او ناچاره شول، او بېرته لاړل؛ نو بني قُریظه په خپلو ټینګو او مضبوطو کلاوو کې ننوتل، او دروازې یې کلکې وتړلې، کله چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د احزابو له جنګه فارغ شو، او په غسل مشغول وو؛ جبرئیل علیه السلام تشریف راوړ، حال دا چې د جبرئیل علیه السلام پر څېره هم د دوړو او غبار آثار وو، او وې ویل: یا رسول الله ! تاسې له خپل ځان وسلې ایسته کړې دي، حال دا چې پرښتې لا هم هغسې مسلحې پخپلو وظایفو کې مشغولې دي، الله تعالی حکم درکوي چې پر بني قُریظه وو دې حمله وکړه شي !، فورًا منادی وشوه، چې «د بني قریظه وو عهد ماتوونکیو یهودیانو باندې د یرغل (حملې) وروړلو حکم دی !»، نو اسلامي افواجو په منتهی سرعت سره د دوی کلاوې تر محاصرې لاندې ونیولې، دغه محاصره تر څلورویشتو یا پنځه ویشتو ورځو وه، بالآخر محصورین ناطاقته شوه، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور د پیغامونو په لېږلو یې شروع وکړه، بالآخر د دوی له طرفه دغه خبره ومنله شوه، چې «مونږ له خپلو کلاوو څخه د باندې راووځو او د «اوس» د قبیلې مشر سعد بن معاذ رضي الله تعالی عنه خپل منځګړی حَکم او منصف دروو، ځکه چې هغه د دوی حلیف وو، هر هغه فیصله چې سعد ځمونږ په نسبت صادره کړه؛ مونږ یې منو»، د دوی دغه خبره رسول الله صلی الله علیه وسلم هم ومنله، لنډه یې دا چې سعد رضي الله تعالی عنه تشریف راوړ، د یوه مسلم حَکم په حیثیت یې فیصله وکړه چې: «د بني قریظه وو ګرد جنګي ځلمیان دې ووژلی شي ! او ښځې او ووړکي دې ټول د مریېتوب په قید کې ونیولی شي !»، سم له دغې فیصلې سره څو سوه ځلمي یهودان ووژل شول، او څو سوه ښځې او ووړکي قیدیان شول، او د دوی پر املاکو او اموالو مسلمانانو قبضه وکړه.

وَأَوْرَثَكُمْ أَرْضَهُمْ وَدِيَارَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ وَأَرْضًا لَّمْ تَطَئُوهَا وَكَانَ اللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرًا ﴿۲۷﴾

او په میراث یې درکړه تاسې ته ځمکه د دوی او کورونه د دوی او مالونه د دوی او هغه ځمکه چې نه وه پایمال کړې تاسې هغه (په څغلولو د اسونو سره)، او دی الله پر هر څیز باندې ښه قادر.

تفسیر: دغه ځمکه چې منورې مدینې ته نژدې ده؛ په لاس ورغله، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه پر مهاجرینو باندې تقسیم کړه، او په دغه سره د دوی د معاش وسیله پیدا شوه، او د دوی د ژوندون بار د انصارو له اوږو څخه لرې شو، له نورو ځمکو څخه مراد د خیبر ځمکې دي چې له دغې واقعې څخه دوه کاله وروسته د مسلمانانو په لاس ورکړی شوې، او په هغو سره نبوي اصحاب خوشاله شول، ځینې وایي چې: بله ځمکه معظمه مکه ده، ځینې ترې د پارس او روم ځمکې مرادوي، چې وروسته له رسول الله صلی الله علیه وسلم د راشدو خلفاوو رضي الله تعالی عنهم أجمعین په لاس فتحه شوې، ځینې وایي: تر قیامت پورې هومره ځمکې چې د مسلمانانو په لاس فتحه کیږي؛ هغه ګردې په دې کې شاملې دي، والله أعلم.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدۡنَ ٱلۡحَيَوٰةَ ٱلدُّنۡيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيۡنَ أُمَتِّعۡكُنَّ
وَأُسَرِّحۡكُنَّ سَرَاحٗا جَمِيلٗا ﴿٢٨﴾ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدۡنَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَٱلدَّارَ ٱلۡأٓخِرَةَ فَإِنَّ ٱللَّهَ أَعَدَّ
لِلۡمُحۡسِنَٰتِ مِنكُنَّ أَجۡرًا عَظِيمٗا ﴿٢٩﴾

ای نبي ! ووایه ته ښځو خپلو ته ! که چېرې يئ تاسې چې غواړئ همدغه ژوندون لږ خسيس او ښایست رونق د هغه؛ پس راشئ چې څه فایده دروړسوم تاسې ته، او خوشې کړم تاسې په خوشې کولو ښکو سره. او که يئ تاسې چې اراده لرئ د الله او د رسول د (الله) او د کور د آخرت (او د نعمتونو د جنّت)؛ پس بېشکه الله تیار کړی دی لپاره د نیکي کوونکیو (ښځو) له تاسې نه اجر ډېر لوی.

تفسیر: د رسول الله صلی الله علیه وسلم مطهّراتو ازواجو کله چې ولیدل ټول خلق ماړه شول؛ نو ویې غوښتل چې ښایي ځمونږ د ژوندون وسائل هم په ښه صورت سره شي !، نو له دوی څخه ځینو بیبیانو له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په دغه مورد کې خبرې اترې وکړې، او ترې ویې غوښتل چې ځمونږ د مزیدو نفقو او سامانونو تهیه وفرمایې !، څو مونږ هم لکه د نورو مسلمانانو په شان په عیش سره ژوندون وکړی شو، پر رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه خبره شاقه تېره شوه، او قسم یې یاد کړ چې تر یوې میاشتې پورې به د هیڅ یوې بي بي کره نه ورځي، مسجد ته قریب په یوې پاسنی کوټه (مشربه) کې دېره شو، صحابه له دغه وضعیت څخه مضطرب شول، ابو بکر رضي الله تعالی عنه او عمر رضي الله تعالی عنه سره زیاته اندېښنه د دوی د لوڼو بي بي عائشه رضي الله تعالی عنها او بي بي حفصه رضي الله تعالی عنها وه، چې هغوی رسول الله صلی الله علیه وسلم له خپلو ځانونو خپه او غمجن نه کړي، او بالوسیله خپل دین او دنیا دواړه له لاسه ور نه کړي، دوی دواړه پر هغوی دواړو په قهر شول، او په خپلو خطاوو یې وپوهولې، بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې د اُنس او د بې تکلفی څه خبرې او اترې وکړې، څو د رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارك طبیعت لږ څه خوښ او منشرح شو، بالآخره یوه میاشت وروسته دغه د تخییر آیت نازل شو، یعنې خپلو ښځو ته په صافو الفاظو سره ووایه چې: له دوو خبرو څخه ښایي دوی یوه خبره ځان ته غوره او اختیار کړي، که دوی دنیوي عیش او عشرت غواړي؛ نو دوی ته ووایه چې: ځما او ستاسې ژوندون سره سخت او مشکل دی، نو راځئ چې په شرعي طریقه سره تاسې ته طلاق درکړم، او که د الله تعالی او د رسول الله خوښې او د آخرت د اعلی مراتبو طالبات يئ؛ نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د پاتې کېدلو له سببه به هغه دررسیږي.

له دغه ځنې به نور څه ښه شي وي چې په جنت کې له ګردو ځنې به اعلی او ارفع مقام کې له سيّد الأنام صلی الله علیه وسلم سره اوسیږي !، د دغه آیت له نزوله وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم کور ته تشریف یووړ، او ړومبی یې د الله تعالی دغه حکم بي بي عایشې صدیقې رضي الله تعالی عنها ته واوراوه، دې د الله او د رسول الله مرضي ځان ته غوره کړه، وروسته له هغه نورو ګردو ازواجو هم داسې وکړه، او د دنیا د عیش او عشرت تصوّر یې له خپلو زړونو څخه وویست.

يَٰنِسَآءَ ٱلنَّبِيِّ مَن يَأۡتِ مِنكُنَّ بِفَٰحِشَةٖ مُّبَيِّنَةٖ يُضَٰعَفۡ لَهَا ٱلۡعَذَابُ ضِعۡفَيۡنِۚ وَكَانَ
ذَٰلِكَ عَلَى ٱللَّهِ يَسِيرٗا ﴿٣٠﴾

ای ښځو د نبي ! هر څوك چې راشي له تاسې په یوه کار ناکاره ښکاره (چې دغه عصیان دی له رسول الله نه)؛ نو دوچنده به کړ شي هغې ته عذاب په دوچند (د عذاب د نورو ښځو)، او دی (دوچندي عذاب) پر الله اسان.

تفسير: د لويانو غلطي هم لويه وي، كه بالفرض له تاسې څنې له كومې يوې د بد اخلاقۍ كوم فعل صادر شي؛ نو هغه سزا چې نورو ته پر هغه عمل وركوله كيږي، د هغه دوچنده تاسو ته دركوله كيږي، او دا كار الله تعالى ته اسان دى، يعنې ستاسې وجاهت او د زوجيت نسبت د الله تعالى د عقوبت څخه له سره څه ممانعت نشي كولى.

وَمَن يَقْنُتْ مِنكُنَّ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَتَعْمَلْ صَالِحًا نُّؤْتِهَا أَجْرَهَا مَرَّتَيْنِ وَأَعْتَدْنَا لَهَا رِزْقًا كَرِيمًا ﴿۳۱﴾

او هر څوك چې (تل) اطاعت وكړي له تاسې الله او رسول د (الله) ته، او عمل كوي د نېكيو؛ نو ور به كړو مونږ هغې ته اجر د هغې دوه كرته (دوه مثله د ثواب د نورو ښځو)، او تيار كړى دې مونږ هغې ته رزق روزي نېكه (زياته په جنّت كې).

تفسير: يعنې پر نېكۍ او اطاعت هغومره اجر چې نورو ته وررسيږي؛ د هغه دوچنده تاسې ته دررسيږي، او مزيد پر هغه يوه خاصه روزي او عزّت به هم درعطاء كيږي، شاه صاحب (رحمه الله) ليكي: «له دغې لويې درجې سره لازمه ده چې دنېكۍ ثواب دوچنده او د بدۍ عذاب هم دوچنده وي»، پخپله رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې فرمايلي دي: ﴿إِذًا لَّأَذَقْنَاكَ ضِعْفَ الْحَيَاةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ﴾ (۱۵ جزء د اسراء سورت (۸) ركوع (۷۵) آيت).

يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ

اى ښځو د نبي ! نه يئ تاسې لكه يو ټولګى (په شان د ټولګي د محمدي امت) له ښځو.

تفسير: يعنې ستاسې حيثيت او مرتبه د عامو ښځو په شان نه ده، ځكه چې تاسې د الله تعالى له جانبه د سيّد المرسلين صلى الله عليه وسلم د زوجيت لپاره انتخاب او غوره شوي يئ، او تاسې يې امّهات المؤمنين ګرځولي يئ، نو كه د تقوى او طهارت ډېره ښه نمونه شئ لكه چې له تاسې څخه همدغه صفات او ستاينه متوقعه ده؛ نو د هغه وزن به د الله جل جلاله په دربار كې ډېر زيات وي، او كه بالفرض كوم بد حركت له تاسې څخه څرګند شي؛ نو په هم هغه تناسب سره د هغه سزا به هم زياته درنه وي، او ډېر زيات قبيح ګڼلى كيږي، الغرض كه د فضائلو خوا وي يا د رذائلو خوا، په دواړو كې ستاسې وضعيت له نورو عامو مؤمناتو څخه جلا او ممتاز دى.

إِنِ اتَّقَيْتُنَّ فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ فَيَطْمَعَ الَّذِي فِي قَلْبِهِ مَرَضٌ وَقُلْنَ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ﴿۳۲﴾

نو كه چېرې پرهېزګاري كوله تاسې؛ پس مه كوئ نرمي په ويلو كې پس (كه پسته خبره تاسې وكړه)؛ نو په طمع كې به پرېوځي هغه څوك چې په زړه كې يې رنځ وي (د نفاق يا د فجور)، او ووايئ تاسې خبره ښه.

تفسير: يعنې كه تقوى او د الله جل جلاله وېره پخپلو زړونو كې لرئ؛ نو له پرديو سړيو سره چې خبرې اترې كوئ چې د هغه ضرورت خصوصًا أمهات المؤمنين ته على الأكثر پيښيږي؛ په پستې او زړه وړونكې لهجې سره يې مه كوئ !، بلا شبهه د ښځو په خبرو كې الله په طبيعي ډول سره يو طبيعي پوستوالى، نزاكت او لطافت ايښى دى، ليكن د پاكو مطهراتو، متقياتو ښځو شان او صفت ښايي داسې وي چې حتى المقدور د اجانبو سړيو سره د ضروري خبرو كولو په وخت كې لږ شانې په تكليف سره داسې خبرې او اترې او لهجه اختيار كړي، چې په كې لږ څه خشونت او ضبط النفس څرګند شي، او د كوم يوه بد باطن قلبي ميلان خپل طرف ته جذب او كش نه كړي، امّهات المؤمنين ته د دوى د لوړ مقام په لحاظ په هسې مواردو كې لا احتياط لازم دى، څو كوم روحاني مريض او د زړه رنځور خپل عاقبت تباه او برباد ونه ګرځوي.

﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾

او قرار ونيسئ (اى ښځو !) په کورونو خپلو کې، او مه ښکاره کوئ (ښايست خپل بېګانه سړيو ته) په شان د اظهار (او ښايست) د جاهليت (د ښځو) ړومبنيو.

تفسير: يعنې پخوا له اسلامه د جاهليت په زمانه کې به ښځې بې پردې ګرځېدې، او د خپل بدن او د لباس ډول ښايست او د سينګار مظاهره او ښودنه به يې په علانيه صورت سره کوله، د دغې بد اخلاقی او بېحيايی وضعيت د مقدّس اسلام په نزد منفور او مهجور وګرځاوه شي، او ښځو ته يې صاف او پاک حکم صادر کړ چې دوی دې پخپلو کورونو کې هستوګنه وکړي !، او د جاهليت د زماني په شانې دې د باندې نه وځي، او نه دې د خپل حسن جمال، ډول او سينګار نمايش او ښودنه کوي !، د أمهات المؤمنين فرض به په دغه معامله کې د نورو په نسبت لا زيات مؤكّد وي، لکه چې د ﴿لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ﴾ په تفسير کې وليکله شوه.

تنبيه: کوم احکام چې په دغو آيتونو کې مذکور دي؛ د ګردو ښځو لپاره دي، د مطهّراتو ازواجو په حق کې کله چې د دې تأکيد او اهتمام زيات ضروري وو؛ نو ځکه په الفاظو سره دوی په خصوصيت سره مخاطبې ګرځولې شوي دي، ځما په نزد له ﴿يَا نِسَاءَ النَّبِيِّ مَن يَأْتِ مِنكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ څخه تر ﴿لَسْتُنَّ كَأَحَدٍ مِّنَ النِّسَاءِ﴾ پورې د دغو احکامو تمهيد وو، په تمهيد کې د دوو شقوقو ذکر وو، د بېحيايی د خبرې ارتکاب او د هغه انسداد هغه په ﴿فَلَا تَخْضَعْنَ بِالْقَوْلِ﴾ څخه تر ﴿تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْأُولَىٰ﴾ پورې وکړی شو، بل د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم اطاعت او صالح عمل د هغه سلسله د ﴿وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ﴾ څخه تر ﴿وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾ پورې دوام لري، خلاصه يې داسې شوه چې: د بدئ له مواقعو څخه د ځان ساتنه او د نېکی په طرف سبقت ګردو ته ضروري دی، مګر مطهّراتو ازواجو ته له ګردو ښځو څخه زيات هغه ضروري او حتمی ده، د دوی د نېکی او د بدئ وزن دوه چنده درولی شوی دی، له دغه تقرير سره موافق د ﴿بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ تفسير هم بې تکلّفه پوهېدلی کېږي.

﴿وَأَقِمْنَ الصَّلَاةَ وَآتِينَ الزَّكَاةَ وَأَطِعْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ﴾

او سم دروئ لمونځ (چې د بدني عباداتو اصل دی)، او ورکوئ زکات (چې د مالي عباداتو اصل دی) او (تل) اطاعت کوئ د الله او د رسول د (الله).

تفسير: يعنې له نورو څخه زيات تاسې د دغو شيانو اهتمام وکړئ ! ځکه چې تاسې له نبي سره اقرب او د امت لپاره نمونه يئ.

﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا ۝٣٣﴾

بېشکه همدا خبره ده چې اراده لري الله د دې چې لرې کړي له تاسې ګناه ای اهل البيت (کورنی د محمد رسول الله) او چې پاک کړي تاسې (له ګناه) په پاکوالي.

تفسير: د الله تعالى اراده همدا ده چې د نبي صلى الله عليه وسلم پر کورنی باندې د دغو احکامو تعميل په ښه شان سره وکړي، او دوی ښه صاف او پاک وګرځوي، او سم د دوی له رتبې سره دوی ته داسې قلبي صفايي او اخلاقي پاکې عطا وفرمايي؛ چې په هغې سره دوی له نورو څخه فائقې او ممتازې وي (چې د هغې په لوري يې په ﴿وَيُطَهِّرَكُمْ﴾ کې د ﴿تَطْهِيرًا﴾ په تزييد سره اشاره فرمايلې ده)، دغه تطهير او د رجس اذهاب هم هغسې نه دی لکه چې د وُضوء په آيت کې ﴿وَلَٰكِن يُرِيدُ لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ﴾ (د المائده (۲) رکوع، (۶) آيت) يا د «بدر» په قصه کې په ﴿لِّيُطَهِّرَكُم بِهِ وَيُذْهِبَ عَنكُمْ رِجْزَ الشَّيْطَانِ﴾ (د الأنفال (۲) رکوع (۱۱) آيت) دا ترې مراد شوی دی، بلکه دلته له تطهير څخه د تهذيب النفس،

تصفية القلب، او تزكية الباطن هغه اعلى مرتبه مراد ده، چې اكملو اولياء الله ته حاصله وي، او د هغې له حصول څخه وروسته اګر كه دوى د انبياء الله په شان معصوم نه ګرځي، هو ! محفوظ ويلى كيږي لكه چې د ﴿يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ﴾ الآية ـ فرمايل او د (أراد الله) نه فرمايل پخپله د دغې خبرې دليل دى چې د أهل البيت لپاره عصمت نه دى ثابت.

تنبيه: په «نظم القرآن» كې تدبّر كوونكيو ته د يوې لمحې لپاره هم په دغه خبره كې هيڅ شك او شبهه نشي واقع كېدى؛ چې دلته د أهل البيت په مدلول كې يقيناً مطهّرات ازواج داخل دي، ځكه چې د دغه آيت څخه ړومبى او وروستى په ټوله ركوع كې ډېر خطابات له هم هغو سره شوي دي، او د «بيوت» نسبت هم پخوا په ﴿وَقَرْنَ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ او وروسته په ﴿وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ﴾ كې د همدوى په طرف كړى شوى دى، علاوه پر دې په قرآن كې عموماً دغه لفظ په همدغه سياق مستعمل شوى دى، د ابراهيم عليه السلام ښځې بي بي سارې رضي الله تعالى عنها ته د خطاب كولو په وخت پرښتې ويلي وو: ﴿أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ رَحْمَتُ اللَّهِ وَبَرَكَاتُهُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الْبَيْتِ﴾ (د هود سورت (۷) ركوع، (۷۳) آيت)، په هر حال په «أهل البيت» كې دلته د ازواجو دخول يقيني دى، بلكه د آيت خطاب ړومبى له هغو سره دى.

وَاذْكُرْنَ مَا يُتْلَىٰ فِي بُيُوتِكُنَّ مِنْ آيَاتِ اللَّهِ وَالْحِكْمَةِ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ لَطِيفًا خَبِيرًا ﴿٣٤﴾

او يادوئ تاسې هغه چې لوستى كيږي په كورونو ستاسې كې له آيتونو د الله (چې قرآن دى) او له حكمته (حديث رسول)، بېشكه چې الله دى ښه مهربان او ښه خبردار.

تفسير: يعنې په قرآن او سنت كې كومې خبرې چې د الله تعالى پر احكامو او د پوهې پر مطالبو شاملې دي؛ هغه زده او يادې كړئ ! او نورو ته يې هم ورښيئ ! او د الله تعالى د عظيم احسان شكر اداء كړئ ! چې تاسو ته يې په داسې متبركو كورونو كې ځاى دركړى دى، چې د حكمتونو خزانه او د هداياتو سرچينه ده، د الله تعالى په آيتونو كې ډېر دقيق اسرار او د قدرت د علاماتو زيات رموزات دي، هغه الله جل جلاله پر دې ښه پوهيږي چې كوم يو سړى د دې امانت د پورته كولو اهل دى؟ هم هغه په خپل لطف او مهربانۍ سره محمد صلى الله عليه وسلم په وحي او تاسې يې د ده په زوجيت سره غوره كړي يئ، ځكه چې الله تعالى د هر چا د احوالو او استعدادو څخه عليم او خبير دى، او هيڅ يو كار بې له حكمته او تدبيره نه كوي.

إِنَّ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُسْلِمَاتِ وَالْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَالْقَانِتِينَ وَالْقَانِتَاتِ وَالصَّادِقِينَ وَالصَّادِقَاتِ وَالصَّابِرِينَ وَالصَّابِرَاتِ

بېشكه چې مسلمان سړي او مسلمانانې ښځې، او مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې، او اطاعت كوونكي سړي او اطاعت كوونكې ښځې، او رښتين سړي او رښتينې ښځې، او صبر كوونكي سړي او صبر كوونكې ښځې.

تفسير: يعنې تكاليف پر ځان اخيستونكي، سختي پر ځان ګالونكي (برداشت كوونكي)، د شريعت پر احكامو قائم او ټينګ پاتې كېدونكي.

وَالْخَاشِعِينَ وَالْخَاشِعَاتِ

او ويرېدونكي عاجزي كوونكي سړي او ويرېدونكې عاجزي كوونكې ښځې.

تفسير: يعنې د تواضع او د عاجزۍ او د انكسار غوره كوونكي يا په خشوع سره د لمانځه اداء كوونكي.

وَالْمُتَصَدِّقِيْنَ وَالْمُتَصَدِّقٰتِ وَالصَّآئِمِيْنَ وَالصّٰٓئِمٰتِ وَالْحٰفِظِيْنَ فُرُوْجَهُمْ وَالْحٰفِظٰتِ وَالذّٰكِرِيْنَ اللّٰهَ كَثِيْرًا وَّالذّٰكِرٰتِ اَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ مَّغْفِرَةً وَّاَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۳۵﴾

او خيرات كوونكي سړي او خيرات كوونكي ښځې، او روژه نيوونكي سړي او روژه نيوونكي ښځې، او حفاظت كوونكي سړي ځاى د شهوت خپل (له ښځو) او ساتونكي ښځې (ځاى د شهوت خپل له سړيو)، او ذكر كوونكي سړي الله لره (ذكر) ډېر او ذكر كوونكي ښځې (الله لره په ذكر ډېر)؛ تيار كړي دي الله دغو (لسو واړو جامع الطاعاتو سړيو او ښځو ته) مغفرت او اجر ډېر لوى.

تفسير: ځينو مطهّراتو ازواجو ويلي وه چې په قرآن شريف كې ډېر ځايونه د نارينه وو ذكر شته، مګر د ښځو ذكر هيچېرې نشته، او ځينو نورو صالحانو ښځو ته داسې خيال پيدا شو چې په سابقه وو آيتونو كې د أزواج النبي صلى الله عليه وسلم تذكار وشو، خو د نورو ښځو په نسبت هيڅ كومه تذكره ونشوه؛ نو په دغه تناسب دغه آيت نازل شو، څو تولې سره متسلّي شي، چې كه نارينه وي يا ښځه؛ د هيچا محنت او زحمت د الله تعالى په نزد نه ضايع كيږي، هم هغسې چې نارينه وو ته د روحاني او اخلاقي ترقۍ د حاصلولو ذرايع او وسايل شته؛ ښځو ته هم دغه ميدان خلاص دى، دغه يې د اناثيه وو طبقې د اطمينان او تسلي لپاره وفرمايل، كه نه هر هغه احكام چې په قرآن كې د نارينه وو لپاره فرمايلي شوي دي؛ هم هغه عمومًا پر ښځو عائديږي، او د بېل نوم اخيستلو لپاره هيڅ ضرورت نه دى پاتې، هو ! په دوى پورې نور خصوصي احكام بېل بيان كړى شوي دي.

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ؕ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ﴿۳۶﴾

او نه دي (روا) هيڅ مؤمن سړي او نه هيڅ مؤمنې ښځې ته كله چې حكم وكړي الله او رسول د (الله) په يو امر كار كې؛ چې وي دوى ته اختيار له امره كاره خپله (په خلاف د امر د الله او د رسول) هيڅ، او هر څوك چې اطاعت نه كوي د الله او د رسول د (الله)؛ پس په تحقيق ګمراه شو په ګمراهى ښكاره سره.

تفسير: بي بي زينب رضي الله تعالى عنها بنت أميمه بنت عبد المطلب د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ترور لور چې د قريشو له ډېرې لويې كورنى څخه وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم وغوښت چې د هغې نكاح «زيد بن حارثه رضي الله تعالى عنه» سره وتړي، دغه زيد هم اصلاً د عربانو له شرفاوو څخه وو، خو كوم ظالم په وړوكوالي دى تښتولى او د مريي په عنوان يې د معظمې مكې په بازار كې خرڅ كړى وو، بيا دغه زيد رضي الله تعالى عنه د بي بي خديجه الكبرى رضي الله تعالى عنها له طرفه په بيع واخيست شو، چې څو موده وروسته بي بي صاحبې دغه خپل مريي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وبانښه، كله چې زيد رضي الله تعالى عنه لوى او هوښيار شو، او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ملګرتوب د شام په يوه تجارتي سفر كې تلو، څه وخت چې زيد رضي الله تعالى عنه د خپل كور او كلي له څنګه تېرېده، دلته يې د خپلو أقاربو او خپلوانو پوښتنه وكړه، څو د زيد رضي الله تعالى عنه پلار، تره او ورور د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شول، او داسې غوښتنه يې تړې وكړه چې: «د زيد معاوضه له مونږ څخه واخلئ ! او پر مونږ يې وسپارئ !»، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: «كه زيد پخپلې رضا او خوښې له تاسې سره ځي؛ ځما له خوا هيڅ ممانعت نشته»، كله چې هغوى له زيد څخه دغه پوښتنه وكړه؛ زيد وويل چې: «زه له

محمد صلی الله علیه وسلم څخه بل هیڅېرې نه ځم، ځکه چې دوی له ما سره ډېر ښه سلوک کوي، او له مور او پلار څخه مې ښه ساتي»، په دغه تقریب رسول الله صلی الله علیه وسلم دی آزاد کړ، او خپل ځوی یې وباله، لکه چې خلقو د هغې زمانې د رواج سره سم ده ته «زید بن محمد» ویل، تر هغه پورې چې دغه آیت نازل شو ﴿ٱدۡعُوهُمۡ لِأٓبَآئِهِمۡ هُوَ أَقۡسَطُ عِندَ ٱللَّهِۚ﴾؛ دلته به د زید بن محمد صلی الله علیه وسلم په ځای خلقو زید بن حارثه باله، کله چې سم د قرآن له حکمه سره د ده له نامه څخه د دغه عظیم نسبت شرف بېل کړی شوی وو، ښایي د دغه د تلافي لپاره د ټولو اصحابو له مجمع څخه یواځې همده ته دغه شرف ورو بخښلی شو چې نوم یې تصریحًا په قرآنکریم کې وارد شو، لکه چې وروسته راځي: ﴿فَلَمَّا قَضَىٰ زَيۡدٞ مِّنۡهَا وَطَرٗا﴾.

په هر حال کله چې د بي بي زینب رضي الله تعالی عنها د کورنۍ حیثیت ډېر لوړ (اوچت) وو، او د زید رضي الله تعالی عنه بن حارثه ظاهرًا د مریبتوب په داغ داغلی شوی وو؛ نو ځکه نه پخپله بي بي زینبه رضي الله تعالی عنها او نه د دې ورور په دغه خوښ او رضا وو، چې د دې نکاح له زید سره وتړله شي، لیکن د الله تعالی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم منظور داسې وو چې داسې موهم تفریقات او امتیازات د دې د نکاح په لاره کې نه ښایي چې حائل شي، نو ځکه رسول الله مبارک پر بي بي زینب رضي الله تعالی عنها او د دې پر ورور زور وغورځاوه څو هغوی پر دغه نکاح راضي شول، په دغه وخت کې دا آیت نازل شو، او دغه خلقو خوښه او مرضي د الله جل جلاله او د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر خوښې او مرضۍ جار او قربان کړله، او د بي بي زینب رضي الله تعالی عنها نکاح له زید بن حارثه رضي الله تعالی عنه سره وتړله شوه.

وَإِذۡ تَقُولُ لِلَّذِيٓ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَأَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِ أَمۡسِكۡ عَلَيۡكَ زَوۡجَكَ وَٱتَّقِ ٱللَّهَ وَتُخۡفِي فِي نَفۡسِكَ مَا ٱللَّهُ مُبۡدِيهِ وَتَخۡشَى ٱلنَّاسَ وَٱللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخۡشَىٰهُۖ فَلَمَّا قَضَىٰ زَيۡدٞ مِّنۡهَا وَطَرٗا زَوَّجۡنَٰكَهَا لِكَيۡ لَا يَكُونَ عَلَى ٱلۡمُؤۡمِنِينَ حَرَجٞ فِيٓ أَزۡوَٰجِ أَدۡعِيَآئِهِمۡ إِذَا قَضَوۡاْ مِنۡهُنَّ وَطَرٗاۚ وَكَانَ أَمۡرُ ٱللَّهِ مَفۡعُولٗا ﴿۳۷﴾

او (یاد کړه ای محمده !) کله چې وویل تا هغه (زید) ته چې انعام کړی وو الله پر هغه (په اسلام سره)، او انعام کړی وو تا پر هغه (په آزادولو سره) چې وساته ته له ځان سره ښځه خپله (زینب بنت جحش) او وویرېږه له الله (په طلاق) حال دا چې پټوله (ای محمده !) تا په زړه کې هغه خبره چې الله ښکاره کوونکی وو د هغې (چې زوجة النبي کېدل د زینب دي)، او ویرېدې ته له خلقو، او الله ډېر لایق دی د دې چې وویرېږې ته له ده نه، کله چې تمام کړ زید له دغې (زینب) څخه خپل غرض (او طلاقه یې کړه او عدّت یې تېر شو)؛ نو په نکاح در کړه مونږ تاته دغه (زینب) لپاره د دې چې نه وي پر مؤمنانو سختي (او وبال) په (نکاح کولو د) ښځو د ادعیاوو د دوی کله چې تمام کړي (دغه ادعیاء) له دوی نه غرض (خپل چې طلاقې یې کړي، او عدّت یې تېر شي)، او دی امر حکم د الله کېدونکی خامخا.

تفسیر: یعنې زید رضي الله تعالی عنه بي بي زینب رضي الله تعالی عنها ته طلاق ورکړ، او د دې عدّت هم تېر شو، او اوس زید رضي الله تعالی عنه له بي بي زینبې رضي الله تعالی عنها سره هیڅ غـرض او تعلّق نه لري، کله چې بي بي زینب رضي الله تعالی عنها د زید رضي الله تعالی په نکاح کې ورغله؛ نو زید بن حارثه رضي الله تعالی عنه د دغې مېرمنې په نظر کې خوار او حقیر ښکارېده، د دې طبیعت او مزاج به له هغه سره نه لګېده، او پخپلو منځو کې یې له همدې سببه موافقت نه کاوه، همېشه د دغو دواړو په منځ کې به جنګ او جګړه نښتې وه، نو زید رضي الله تعالی عنه به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په حضور کې حاضرېده، او خپل دغه شکایت به یې وروړاندې کاوه، او همداسې به یې ویل چې: زه دغه خپله ښځه خوشې کوم، ځکه چې ځما ګذران ورسره نه کیږي، خو رسول الله صلی الله علیه

وسلم به تل دی منع کاوه، او د صبر او استقامت توصیې به یې ورته کولې، او ورته به یې ویل چې: هغې ځما له خاطره او د الله او د رسول په حکم د خپلې خوښې خلاف له تاسره خپله نکاح وتړله، نو که ته یې اوس خوشې کړې؛ نو دغه طلاق به هم هغې او هم د هغې نورو عزیزانو او خپلوانو ته د سپکوالي په منزله وي، نو ځکه له الله څخه وویرېږه ! او په وړوکو وړوکو خبرو دغسې خبرې ته اقدام مه کوه، او څو دې له وسه کیږي؛ ګذران کوه ! او شپې او ورځې دې ورسره په ښه شان تېروه ! کله چې په هیڅ ډول د دوی دواړو په منځ کې موافقت رانغی، نو ممکن دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زړه کې به دغې خبرې خطور کړی وي، که زید لا علاجه شي او مجبورًا خپله ښځه خوشې کړي؛ نو د بي بي زینبې تسلي او اطمینان بې له دې نه په بل شي نه کیږي څو چې زه خپله نکاح ورسره ونه تړم، لیکن د جاهلانو او منافقانو له بد ویلو څخه په اندېښنه کې وو، چې دوی به داسې وایي چې: «محمد د خپل ځوی ښځه په نکاح واخیسته»، حال دا چې دغه خبره دوی ته لا له پخوا څخه معلومه وه، چې د الله جل جلاله په نزد متبنّي په هیڅ یوه خبره کې د ځوی حکم نه لري.

له بل جانبه د الله تعالی اراده داسې وه چې دغه د جهالت خیال او مفکوره هم د خپل رسول په وسیله په عملي طور سره لرې او ورکه کړي، څو مسلمانانو ته په مستقبل کې له داسې مسائلو ځنې هیڅ قسم تکلیف او زحمت ورپېښ نه شي، او د هیڅ قسم توحّش او استنکاف مورد ورپاتې نه وي، نو الله تعالی خپل رسول ته اطلاع ورکړه چې: «زه بي بي زینب ستا په نکاح کې درکوونکی یم»، ولې یې درکوم؟ دغه پخپله د پاک قرآن دغه الفاظ ﴿لِكَيْ لَا يَكُونَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ حَرَجٌ فِي أَزْوَاجِ أَدْعِيَائِهِمْ﴾ په صاف او ښکاره ډول سره ظاهروي، یعنې غرض له دغې نکاح څخه دا دی چې د نورو له زړه څخه دغه د جاهلیت خیال بیخي محو او معدوم شي، او وروسته له دې نه بل هیڅ قسم تنګسه او ممانعت په دغه معامله کې پاتې نشي.

پاتې شوې هغه چټې او بې موردې قصې او خبرې چې حاطب اللّیل مفسّرین او مؤرخین او بالخاصه اروپایي مستشرقینو په دغه مقام کې لیکلي دي، او ځمونږ ځینې متجدد ځلمیان هم هغه د خپلې پوهې د نمونې پشان بیانوي؛ د هغوی په نسبت حافظ ابن حجر العسقلاني (رحمه الله) داسې لیکي: «لاینبغي التشاغل بها» یعنې د هغو ذکر کول د وخت ضایعول دي، او ابن کثیر (رحمه الله) لیکي: «أحببنا أن نضرب عنها صفحًا لعدم صحتها فلا نوردها»، یعنې دغه روایتونه مو پرېښودل، ځکه چې اصلاً ثبوت او صحت نلري.

مَا كَانَ عَلَى النَّبِيِّ مِنْ حَرَجٍ فِيمَا فَرَضَ اللَّهُ لَهُ ۖ سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلُ ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللَّهِ قَدَرًا مَقْدُورًا ﴿٣٨﴾ الَّذِينَ يُبَلِّغُونَ رِسَالَاتِ اللَّهِ وَيَخْشَوْنَهُ وَلَا يَخْشَوْنَ أَحَدًا إِلَّا اللَّهَ ۗ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا ﴿٣٩﴾

نشته پر نبي هیڅ قدر سختي (او وبال) په هغه کار (د نکاح د زینبې) کې چې مقرره کړې وه الله ده ته، طریقه مقرره کړې ده الله په هغو (انبیاوو) چې تېر شوي دي ړومبي له دې نه، او دی امر حکم د الله یو حکم مقرر کړی شوی. هغه (انبیاء) چې رسوي پیغامونه د الله، او ویرېږي له دغه (الله)، او نه ویرېږي د بل هیچا مګر یواځې له الله، او کافي دی الله ښه حساب کوونکی (د بندګانو).

تفسیر: یعنې د الله تعالی حکم قاطع او نافذ دی، کومه خبره چې د ده له جانبه صادره شوي وي؛ هغه هرومرو کیدونکې ده، بیا نبي صلی الله علیه وسلم ته په داسې کولو کې هیڅ مضایقه نشته، چې په شریعت کې روا شوې ده، انبیاء او رسولان د الله تعالی په پیغام رسولو کې له ماسوا الله د بل هیچا څخه نه دي ویریدلي، کله چې تا هم خپل د دغه پیغام په رسولو کې تر نن ورځې پورې د هیڅ شي پروا نه ده کړې، او نه د چا د ویلو او اورولو له تصوره لرې څه متأثر شوی یې، نو بیا د دې نکاح په معامله کې به ولې څه ممانعت واقع شي؟، داود علیه السلام یو سل ښځې درلودې (لرلې)، همداسې سُلیمان علیه السلام هم د ازدواج په کثرت کې مشهور دی، سفهاء او ناپوهان هغه الزام چې پر تاسې اړوي؛ د سابقینو

انبياوو په سوانح کې له دې نه زيات دهغه اشباه او نظائر شته، لهذا تاسې ته نه ښايي چې دغو سفاهتي او جهالتي تنقيداتو ته وګورئ! وروسته دغه راښيي چې زيد بن حارثه رضي الله تعالى عنه چې هغه تاسې د خپل ځوى په ځاى بللى وو؛ ستاسې واقعي ځوى خو نه دى ګرځېدلى چې د هغه د مطلقې ښځې سره به تاسې نکاح نشئ ترلى، او يو زيد رضي الله تعالى عنه څه بلکه تاسې له نورو نارينه وو ځنې هـم د هيڅ يـو سړي پلار نه يئ، ځکه چې ستاسې له اولادې ځنې خو يا هغه هلکان وو چې په وړوکوالي کې مړه شول، او ځينې د دغه آيت د نزول په وخت کې بيخي نه وو پيدا شوي، يا خو جونې وې، چې د هغوى څخه د سيدتنا فاطمة الزهراء رضي الله تعالى عنها اولاده په دنيا کې منتشره او خوره شوه.

مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَآ أَحَدٍ مِّن رِّجَالِكُمْ وَلَٰكِن رَّسُولَ ٱللَّهِ

نه دى محمد صلى الله عليه وسلم (حقيقي) پلار د هيڅ يو تن له سړيو ستاسې، وليکن رسول د الله دى.

تفسير: يعنې هيڅوک د ده ځوى مه ګڼئ! محمد صلى الله عليه وسلم د پاك الله رسول دى.

وَخَاتَمَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٤٠﴾

او مهر (او آخرنى) د (ټولو) انبياوو دى (چې پس له دې نه بل نبي نشته)، او دى الله پر هر څيز ښه عالم.

تفسير: د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په تشريف راوړلو سره د انبياوو پر سلسله د اختتام مهر ولګېد، اوس به هيچا ته نبوّت نه ورکاوه کيږي، پس هر چا ته چې نبوّت رسېدلى دى، نو له همدې جهته د ده د نبوّت دوره له ګردو انبياوو څخه وروسته اينبې شوې ده چې د قيامت تر قيام پورې به اوږدوالى لري، عيسي المسيح عليه السلام به هم په آخره کې د محمد صلى الله عليه وسلم د يوه امّتي په شان راځي، او د عيسوي شريعت عمل په هغه وخت کې جاري نه وي، لکه چې نن ورځ هم د ګردو انبياوو اديان پخپلو ځايونو کې موجود شته، مګر په ټوله دنيا کې يواځې محمدي نبوّت جاري او ساري دى، په حديث کې راغلي دي: «که نن موسى عليه السلام د ځمکې په سر ژوندى وى؛ نو هغه ته به هم ماسوا ځما له متابعته بله چاره نه وه».

تنبيه: د نبوّت د ختم په متعلق له قرآن، حديث، د امت اجماع څخه په سلهاوو دلائل ځينو معاصرو عالمانو راټول کړي دي، او ترې مستقل کتابونه يې ليکلي دي، چې د هغو له کتلو څخه لږ څه تردّد او اشتباه نه پاتې کيږي چې د دغې عقيدې منکر قطعًا کافر او له اسلامي ملّت څخه خارج دى، «او دى الله پر هر څيز ښه عالم» يعنې همدغه الله تعالى پر دغه باندې هم عليم او خبير دى چې د رسالت يا د نبوّت ختم په کوم ځاى کې کېښود شي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱذْكُرُوا۟ ٱللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا ﴿٤١﴾ وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴿٤٢﴾

اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو!) يادوئ الله په يادولو ډېرو سره. او تسبيح وايئ (لمونځ کوئ) ده ته په صبا او په بېګا کې.

تفسير: يعنې الله تعالى دومره لوى احسان فرمايلى دى چې داسې عظيم الشأن رسول او د انبياوو سردار محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم يې ستاسې د هدايت لپاره لېږلى دى، نو پر دغه د ده شکر اداء کړئ! او له سره حقيقي منعم مه هېروئ! په ناستې او ولاړې، په تللو او راتللو، په شپه او ورځ، په سبا او بېګا په ګردو اوقاتو او حالاتو او محلاتو کې د الله تعالى په ذکر او فکر کې لګيا اوسئ!.

هُوَ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْكُمْ وَمَلَٰٓئِكَتُهُۥ لِيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَٰتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا ﴿٤٣﴾

دی هغه (الله) دی چې رحمت (نازلوي) پر تاسې او پرښتې د دغه (الله هم مغفرت درته غواړي)
لپاره د دې چې وباسي (الله) تاسې له تيارو (د کفره) رڼا ته (د اسلام)، او دی (الله) پر مؤمنانو ډېر
رحم کوونکی.

تفسير: يعنې د الله تعالی د زيات ذکر او په کثرت سره د يادولو نتيجه داسې کيږي چې الله تعالی خپل رحمت پر تاسې نازلوي، همدغه رحمت او برکت دی چې ستاسې لاس يې نيولی دی، او د جهالت او ضلالت له تيارو څخه يې ايستلي يئ، او د علم، پوهې او تقوی د رڼا په طرف يې لاره درښوولې او بيولي يې يئ، که د الله تعالی خاصه مهرباني پر ايمان لرونکيو نه وی؛ نو د ايمان دولت به دوی ته له کومه ځايه ورعطاء کېده؟ او څرنګه به هغه له دوی سره محفوظ پاتې کېده؟ د الله تعالی په لطف او مهرباني مؤمنين د رُشد او هدايت، ايمان او احسان په طريقو کې ترقي کوي، دغه خو د دوی دنيوي حال دی، د دوی د اخروي اعزازو او اکرامو ذکر وروسته راځي.

تَحِيَّتُهُمْ يَوْمَ يَلْقَوْنَهُۥ سَلَٰمٌ ۚ وَأَعَدَّ لَهُمْ أَجْرًا كَرِيمًا ﴿٤٤﴾

(د الله) پېشکش دوی ته په هغې ورځې چې ملاقات وکړي دوی له دغه (الله) سره؛ سلام دی، او
تيار کړی دی (الله) دوی ته اجر ډېر لوی.

تفسير: يعنې الله تعالی به پر دوی سلام ليږي، او پرښتې به هم پرې سلام اچوي، او بيا ورننوځي کيږي، مؤمنين به هم پخپلو منځونو کې د سلامونو همداسې مبادله او تعارف کوي، لکه چې په دنيا کې يې سره کوي.

يَٰٓأَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّآ أَرْسَلْنَٰكَ شَٰهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا ﴿٤٥﴾

ای نبي ! بېشکه مونږ لېږلی يې ته شاهد (په هغه چا چې ورلېږلی شوی يې)، او زېری ورکوونکی
(په نعيم سره مؤمنانو ته)، او ويروونکی (له جحيم څخه کافرانو ته).

تفسير: يعنې محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم تاسې ته د الله تعالی توحيد در زده کوي، او تاسو ګردو ته سمه صافه لاره درښيي، هر هغه شی چې وايي؛ په زړه او په عمل سره پرې شاهدي ورکوي، او په محشر کې به هم د امت په نسبت شاهدي لولي، چې د الله تعالی پيغام کوم يوه سړي تر کومې اندازې پورې منلی دی؟ يعنې غاړه اېښودونکي او فرمان منونکي ته په ثواب سره زېری ورکوي، غاړه غړوونکي او نافرمانان په عذاب سره ويروي.

وَدَاعِيًا إِلَى اللَّهِ بِإِذْنِهِۦ وَسِرَاجًا مُّنِيرًا ﴿٤٦﴾

او بلونکی (د خلقو عبادت د) الله ته په اذن حکم د دې (الله) او ډيوه روښانوونکې.

تفسير: پخوا يې فرمايلي وو چې د الله تعالی رحمت مؤمنين له تيارو څخه وباسي، او رڼا ته يې راولي؛ دلته دغه راښيي چې هغه رڼا د دغې ډيوې څخه منتشره شوې ده، ښايي د ډيوې لفظ په دغه ځای کې په هغې معنی سره وي چې د «نوح» په سورت کې داسې فرمايلي شوي دي: ﴿وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا﴾ «الله تعالی سپوږمۍ رڼا او لمر يې ډيوه ګرځولې ده»، يعنې تاسې د نبوّت او د هدايت هغه لمر يې چې ستاسې د طلوع څخه وروسته بلې کومې رڼا ته هيڅ ضرورت نه دی پاتې، او نورې ګردې رڼاګانې په دغه اعظم نور کې محو او مدغم شوې دي.

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ بِأَنَّ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ فَضْلًا كَبِيْرًا ﴿۴۷﴾

او زېرى وکړه په مؤمنانو په دې چې بېشکه شته دوى ته له (طرفه د) الله فضل ډېر لوى (جنّت).

وَلَا تُطِعِ الْكٰفِرِيْنَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَدَعْ اَذٰىهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۴۸﴾

او مه منه (حکم) د کافرانو او منافقانو، او پرېږده ضرر د دوى (په انتقام اخيستلو کې) او توکل وکړه پر الله، او کافي دى الله وکيل (کار جوړوونکى).

تفسير: يعنې کله چې الله تعالى تاسې ته داسې کمالات او داسې غوره جماعت عنايت فرمايلى دى؛ نو تاسې د دعوت او اصلاح او تبليغ فرائض په پوره قوت سره اداء کوئ! او پر هغه حکم چې الله تعالى تاسې ته درکړى؛ د هغه په ويلو او کولو کې د هيڅ يوه کافر او منافق او د نورو پروا مه کوئ!.

﴿وَدَعْ اَذٰىهُمْ﴾ الآية ـ يعنې که دغه اشقياء تاسې په ژبه او عمل وځوروي؛ نو تاسې د دوى هيڅ پروا مه کوئ! او پر پاک الله توکل او اعتماد وکړئ! هغه به په خپل قدرت او رحمت سره ګرد کارونه جوړوي، د مجرمينو لاربښوونه يا د دوى په سزا رسونه دغه ټول د همده په لاس کې دي، تاسې ته هيڅ ضرورت نه دى پاتې چې په دغه فکر او اندېښنه کې خپل ځان وکړوئ!، د دوى مطلب خو همداسې دى څو تاسې د دوى له طعنو څخه وويرېږئ، او د خپل دعوت او تبليغ له فريضې څخه مخ واړوئ، که په فرض المحال سره تاسې همداسې وکړئ؛ نو ګواکې د دوى مطلب مو پوره کړ (العياذ بالله).

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نَكَحْتُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ثُمَّ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ فَمَا لَكُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ عِدَّةٍ تَعْتَدُّوْنَهَا ۚ فَمَتِّعُوْهُنَّ وَسَرِّحُوْهُنَّ سَرَاحًا جَمِيْلًا ﴿۴۹﴾

اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو!) کله چې په نکاح واخلئ مؤمنې ښځې بيا طلاقې کړئ تاسو دوى پخوا له دې نه چې مس (صحيحه خلوت) وکړئ له دوى سره؛ پس نشته تاسې ته پر دغو مطلقاتو هيڅ شمېر (د ورځو) چې شمېرئ به تاسو هغه، نو ورکړئ دوى ته څه فائده او خوشې کړئ دوى په خوشې کولو ښو سره.

تفسير: يعنې هغه سړي چې خپلې ښځې ته پخوا له جماع يا صحيحه خلوت څخه طلاق ورکړي، که د دې لپاره يې مهر ټاکلى وي؛ نو نيمايي مهر يې پرې اوړي، که نه لږ څه فائده دې وروړسوي!، يعنې سم له عُرف او خپل حيثيت سره يوه جوړه جامه دې ورکړي، او په ښه صورت سره دې خوشې او مرخصه کړي، او که ښځه په دغه صورت وغواړي چې له بل چا سره خپله نکاح وتړي؛ نو عدّت پرې نشته، دغه مسئله يې دلته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مطهّراتو ازواجو په ذکر کې بيان وفرمايله، چې د هغه سلسله له لرې ځاى څخه دوام لري، په منځ کې څو آيتونه د ضمني مناسباتو له سببه راغلل، له دې ځايه بيا د سابق مضمون په طرف عود وکړى شو، په رواياتو کې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم له يوې ښځې سره نکاح وتړله، کله چې هغې ته ورنژدې کېده؛ نو دغې ښځې وويل چې: «زه له تا څخه الله تعالى ته پناه نيسم»، رسول الله صلى الله عليه وسلم وويل: «تا لوى پنا ځاى ځان ته غوره کړى»، نو په دغه نسبت دا آيت نازل شو، او خطاب يې ايمان لرونکو ته وفرمايه، څو معلوم شي چې دغه حکم په رسول الله صلى الله عليه وسلم پورې څه خصوصيت نه لري، بلکه پر ګردو مسلمانانو همدغه حکم شته، سم له دغه سره رسول الله مبارک صلى الله عليه وسلم هغې ښځې ته جوړه ورکړه، او مرخصه يې کړه، مګر دغې ښځې په ټول عمر کې پر خپل محروميت ژړل.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِىُّ إِنَّآ أَحْلَلْنَا لَكَ أَزْوَٰجَكَ ٱلَّٰتِىٓ ءَاتَيْتَ أُجُورَهُنَّ وَمَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ مِمَّآ أَفَآءَ
ٱللَّهُ عَلَيْكَ وَبَنَاتِ عَمِّكَ وَبَنَاتِ عَمَّٰتِكَ وَبَنَاتِ خَالِكَ وَبَنَاتِ خَٰلَٰتِكَ ٱلَّٰتِى هَاجَرْنَ مَعَكَ
وَٱمْرَأَةً مُّؤْمِنَةً إِن وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِىِّ إِنْ أَرَادَ ٱلنَّبِىُّ أَن يَسْتَنكِحَهَا خَالِصَةً لَّكَ مِن
دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ فِىٓ أَزْوَٰجِهِمْ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَٰنُهُمْ لِكَيْلَا
يَكُونَ عَلَيْكَ حَرَجٌ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٥٠﴾

اى نبي ! بېشكه مونږ حلالې كړې دي تاته ښځې ستا، هغه ښځې چې وركړي دي تا دوى ته مهرونه د دوى، او هغه ښځې چې مالك شوى دى (د هغو) ښي لاس ستا له هغو (وينځو) چې راګرځولي دي الله په تا (له كفّارو)، او لوڼې د عم (تره) ستا، او لوڼې د عمې (ترور) ستا، او لوڼې د ماما ستا، او لوڼې د خاله (توړۍ ـ د مور خور) ستا، هغه ښځې چې هجرت يې كړى دى له تا سره، او هغه ښځه مؤمنه چې وبښي نفس خپل نبي ته (بې له مهره) كه اراده وكړي نبي د دې چې په نكاح واخلي (بې مهره) دغه (ښځه)، خالصه (جايزه ده) تاته غير له نورو مؤمنانو، په تحقيق معلوم دي مونږ ته هغه چې مقرر كړي دي مونږ پر دوى باندې په (حق د) ښځو د دوى كې او په (حق د) هغو وينځو كې چې مالكان دي (د هغو) ښي لاسونه د دوى، لپاره د دې چې نه وي پر تا باندې هيڅ حرج سختي، او دى الله ښه بخښونكى (د خطيّاتو) ډېر رحم كوونكى.

تفسير: يعني له هغو وينځو چې په غنيمت او نورو كې ستاسې په لاس درشي، او ستا هغه ښځې چې د دوى مهر دې وركړى دى، يعني چې اوس ستاسې په نكاح كې دي، كه قريشي وي، يا له مهاجراتو څخه وي يا نه وي؛ ټولې تاسې ته حلالې دي، له دوى څني هيڅ يوه د دې وړ او قابله نه ده چې خوشې كړى شي، د تره، د ترور، د ماما، او د توړۍ لوڼې يعني له قريشيانو څني چې د مور يا د پلار له جانبه د تا قرابت دارى وي؛ د هجرت په شرط حلالې دي، او تاسې له هغوى سره نكاح كولى شئ، او هره ښځه چې خپل ځان نبي ته وبخښي، يعني بې له مهره وغواړي چې په نكاح كې يې راشي؛ هغه هم حلاله ده، كه تاسې داسې په نكاح راوړل خوښوئ ! دغه اجازت مخصوص رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دى، اګر كه دوى پر دغه اجازت عمل نه دى كړى (كما في الفتح)، ښايي له ﴿أَرَادَ ٱلنَّبِىُّ﴾ څخه مرجوحه اباحت ګڼلى شوى وي، په هر حال نورو مسلمانانو ته هغه حكم دى چې معلوم شوى دى: ﴿أَن تَبْتَغُوا۟ بِأَمْوَٰلِكُم﴾ الآية ـ (النساء (۴) ركوع)، يعني بې له مهره نكاح نه كيږي، كه د عقد په وخت كې د هغه ذكر شوى وي، او كه وروسته له هغه ټاكلى شوى وي؛ يا هيڅ نه وي ټاكلى شوى؛ نو په دغه صورت كې مهر المثل يعني هغه مهر چې د دې اقاربو او خپلوانو كې معمول او مروج وي؛ واجبيږي، له رسول الله صلى الله عليه وسلم څني الله تعالى دغه مهر قيد لرې كړى دى، په خلاف د مؤمنينو چې هغوى ته نه د دې خبرې اجازه ده، چې له څلورو ښځو څخه زياتې ښځې واخلي، او نه دا چې كومه ښځه بې له مهره په نكاح راولي.

تُرْجِى مَن تَشَآءُ مِنْهُنَّ وَتُـْٔوِىٓ إِلَيْكَ مَن تَشَآءُ وَمَنِ ٱبْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكَ ذَٰلِكَ
أَدْنَىٰٓ أَن تَقَرَّ أَعْيُنُهُنَّ وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَآ ءَاتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِى قُلُوبِكُمْ
وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَلِيمًا ﴿٥١﴾

ببرته كوې ته هر هغه ښځه چې غواړې ته له دغو ښځو خپلو، او رانژدې كوې ځان ته هره هغه ښځه (خپله) چې غواړې ته (له دغو ښځو خپلو)، او هغه چې بيا يې وغواړې له هغو (ښځو

خپلو) چې لرې کړې دي؛ پس نشته هيڅ ګناه پر تا باندې، دغه (تفويض د واک ـ اختيار د ښځو خپلو) تاته ډېر نژدې دی چې يخې او روښانه شي سترګې د دوی (او خوشاله شي)، او نه به غمجنې کيږي، او راضي شي دوی په هغه شي چې ورکړی تا دوی ټولو ته، او الله ته معلوم دي هر هغه څه چې په زړونو ستاسې کې دي (له رغبت او کراهيت د ښځو)، او دی الله ښه عالم ډېر تحمّل والا.

**تفسير:** يعنې د «واهبة النفس» په متعلق اختيار لرې چې قبلوې يې او که يې نه قبلوې، او د موجوده وو ښځو څخه ته مختار يې چې کومه يې ساتې او کومې يوې ته يې طلاق ورکوې، او هم د هغو ښځو په نسبت چې پاتې شي؛ پر تاسې نوبت نه دی واجب چې خامخا يوه يوه شپه له هرې يوې سره به اوسېږې، د هرې يوې په نسبت چې زړه مو غواړي؛ وړاندې وروسته هم کولی شې، او له هرې يوې څخه مو چې ځان بېل کړی وي؛ بيا د هغې د بېرته اخيستلو اختيار هم لرې، سره له دې چې دغه حقوق او اختيارات ده ته ورکړی شوي وو؛ مګر ده په خپل ټول عمر کې له دغو اختياراتو څخه کار وانخيست، په معاملاتو کې يې دومره زيات له عدل او مساوات څخه کار اخيست او د هغه مراعات به يې کاوه؛ چې ډېر لوی محتاط سړی به هم هغسې نشي کولی، خو سره له دې نه که د ده قلبي ميلان د چا په لوري بې اختياره کېده؛ نو داسې به يې فرمايل: «اللهم هذا قِسمي فيما أملك، فلا تلُمني فيما تملك و لا أملك»، «ای الله ! دغه ځما تقسيم دی په هغو شيانو کې چې ځما په واک او اختيار کې دي، او پر هغه څيز کې چې يواځې ستا په اختيار کې دی، او ځما په اختيار کې نه دی؛ مه مې ملامتوه !»، ښايي په ﴿وَاللهُ يَعۡلَمُ مَا فِي قُلُوبِكُمۡۚ وَكَانَ اللهُ عَلِيمًا حَلِيمًا﴾ کې د همدغه په لوري اشاره وي.

لَا يَحِلُّ لَكَ ٱلنِّسَآءُ مِنۢ بَعۡدُ وَلَآ أَن تَبَدَّلَ بِهِنَّ مِنۡ أَزۡوَٰجٖ وَلَوۡ أَعۡجَبَكَ حُسۡنُهُنَّ

نه دي حلالې تاته ښځې پس له دغو (نهو ښځو چې اوس دې په نکاح دي)، او نه دغه (در ته روا دي) چې بدل کړې په دوی له نورو ښځو، اګر که تعجب در ولی تاته ښايست د هغو نورو هم.

تفسير: يعنې هومره اقسام يې چې په کې فرمايلي دي، له هغو څخه زياتې نه دي حلالې، او څه چې موجودې دي؛ د هغوی بدلول نه دي حلال، يعنې دغه چې له دوی څنې کومه يوه د دې لامله خوشې کړې چې د هغې په ځای بله کومه يوه راولې.

إِلَّا مَا مَلَكَتۡ يَمِينُكَۗ

مګر (خو روا دي درته) هغه وينځې چې مالک وي ښې لاس د تا.

**تفسير:** يعنې وينځه، کنيزک، د رسول الله مبارک دوه ښځې مشهورې دي، يوه «مارية القبطية» چې د دې له نسه ابراهيم متولّد او په هلکتوب کې وفات شو، دويمه ريحانة رضي الله تعالی عنهما.

وَكَانَ ٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ رَّقِيبٗا ﴿٥٢﴾

او دی الله په هر څيز باندې ښه ساتونکی.

**تفسير:** يعنې الله تعالی درته ګوري چې په کوم يوه د احکامو او حدودو پابندي کوې؟ او پر کوم يوه يې نه کوې؟ نو ښايي چې انسان د هر کار د کولو په وخت کې همدغه خبره تر نظر لاندې ونيسي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدۡخُلُواْ بُيُوتَ ٱلنَّبِيِّ إِلَّآ أَن يُؤۡذَنَ لَكُمۡ إِلَىٰ طَعَامٍ غَيۡرَ نَٰظِرِينَ إِنَىٰهُ وَلَٰكِنۡ إِذَا دُعِيتُمۡ فَٱدۡخُلُواْ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو !) مه ننوځئ كورونو د نبي ته مګر (هغه وخت ننوځئ) چې اذن وكړى شي تاسې ته (خوړلو د) طعام ته په دغه حال كې چې نه اوسئ منتظر پخلي د هغه ته، وليكن كله چې وبلل شئ تاسې؛ پس ننوځئ !.

تفسير: يعنې بې له حكمه او اجازې دعوت ته مه ځئ ! ځو تاسې يې نه يئ غوښتى، پخپل سر چېرې مه درومئ ! كه نه هلته به په انتظار كې ناست پاتې كېږئ، او د هغه كورنۍ د كارونو په اجراء كې به مانع ګرځئ، او د حرج عوامل به پيدا كوئ !.

فَإِذَا طَعِمۡتُمۡ فَٱنتَشِرُواْ وَلَا مُسۡتَـٔۡنِسِينَ لِحَدِيثٍۚ

پس كله چې طعام وخورئ؛ نو خواره شئ (نور ځنډ مه كوئ هلته)، او مه كېنئ آرام نيوونكي لپاره د خبرو (يو له بل سره).

تفسير: يعنې څه وخت چې له ډوډۍ څخه فارغ شوئ؛ نو ښايي د خپلو كورونو په طرف بېرته ولاړ شئ ! ځكه چې د هملته كېناستلو او مجلس جوړولو څخه هغه كوربه ته تكليف او حرج واقع كيږي، دغه خبرې اګر كه د نبي الله صلى الله عليه وسلم د كورونو په متعلق فرمايلې شوې دي، ځكه چې د شان نزول تعلق له هغه سره دى، مګر ترې د يوه عمومي ادب ښوونه مقصود ده، چې: بې له غوښتنې د چا كره تلل، يا د كوم مېلمه سره مل شوى په طفيلي حيثيت د چا كره ننوتل، يا پخوا له ډوډۍ همداسې خوشې هلته پنډېدل، او خبرې اترې كول، يا وروسته د ډوډۍ له فراغه هلته كېناستل، او مجلس او ساعت تيري كول نه دي پكار.

إِنَّ ذَٰلِكُمۡ كَانَ يُؤۡذِي ٱلنَّبِيَّ فَيَسۡتَحۡيِۦ مِنكُمۡۖ وَٱللَّهُ لَا يَسۡتَحۡيِۦ مِنَ ٱلۡحَقِّۚ

بېشكه دغه (ننوتل كېناستل خبرې كول) دى داسې كار چې تكليف رسوي نبي ته، پس حيا كوي (نبي) له تاسې (چې وباسي تاسې) او الله حياء نه كوي له (ويلو د خبرې) حقې.

تفسير: يعنې نبي الله صلى الله عليه وسلم د شرم او حياء له وجې پر خپل ځان تكليف اخلي، او د خاطر او لحاظ لامله په صافو الفاظو سره دغو مېلمنو ته نه وايي چې ځئ ! خپلو ځايونو ته لاړ شئ ! چې ماته تكليف او اذيت پيښيږي، دا خو د نبي الله صلى الله عليه وسلم د اخلاقو وضعيت دى، مګر ستاسې له تأديب او اصلاح څخه هيڅ شى پاك الله نشي منع كولى، او الله تعالى هرومرو د خپل رسول الله صلى الله عليه وسلم په ژبه تاسې ته خپل احكام در ښكاره كوي.

وَإِذَا سَأَلۡتُمُوهُنَّ مَتَٰعًا فَسۡـَٔلُوهُنَّ مِن وَرَآءِ حِجَابٍۚ ذَٰلِكُمۡ أَطۡهَرُ لِقُلُوبِكُمۡ وَقُلُوبِهِنَّۚ

او كله چې وغواړئ تاسې له دغو (مطهّراتو ازواجو) څخه كوم متاع (كوم څيز)؛ پس غواړئ هغه له دوى نه د باندې د پردې، دغه (غوښتل د باندې د پردې) د تاسې ډېر پاك ساتونكى دى د زړونو ستاسې او (ډېر پاك ساتونكى دى) د زړونو د دوى.

تفسير: شاه صاحب (رحمه الله) ليكي: «په دغه سره الله تعالى مسلمانانو ته ادب ښوولى دى، كله چې دوى به د ډوډۍ لپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم كره ورتلل؛ نو وروسته له ډوډۍ ځنې به هملته كښېناستل، او په خپلو خبرو اترو به

مشغولېدل، حال دا چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هوساینې (آرام) او استراحت ځای به هم هغه وو، مګر دوی له شرمه او حیاء دوی ته نه ویل چې ځئ پاځئ ! نو ځکه پاک الله دوی ته وفرمایل، او په دغه آیت کې د پردې حکم صادر شو، چې نارینه دې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له ازواجو سره مخامخ نشي، که کوم شی غواړي؛ نبايي چې د پردې له شاه يې وغواړي، په دغه کې د جانبينو زړه صاف او پاک پاتې کيږي، او د شيطاني وساوسو استيصال په عمل راځي».

وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ أَبَدًا ۚ إِنَّ ذَٰلِكُمْ كَانَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمًا ﴿٥٣﴾

او نه ده روا تاسي ته دا چې تکليف (او ضرر) ورسوئ رسول د الله ته، او نه ده (روا تاسي ته) دا چې په نکاح واخلئ ښځې د ده پس له وفات (یا طلاق) د ده هیڅکله، بېشکه دغه (ایذاء د رسول او د ازواجو نکاح يې) ده په نزد د الله (ګناه) ډېره لويه.

تفسير: يعني د کفارو او منافقينو هر څه چې زړه يې غواړي چتې دې ووايي، او پخپلو همدغو ايذاء رسولو کې دې مشغول اوسي !، مؤمنينو ته چې د ډېرو دلائلو او براهينو په رڼا کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم انتهايي امانت، عفّت، طهارت، ظاهر ا و ښکاره شوی دی؛ دغه خبره لایقه او مناسبه نه ده چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حیات یا ممات کې داسې کومه خبره وکړي یا يې ووايي چې د دوی د ډېرې ضعيفې درجې ايذاء او خفګان سبب وګرځي، په مونږ او ټولو مؤمنانو لازم دي چې د خپل دغه محبوب او مقدس رسول د عظمت شان تل ترتله رعايت کړو، او همېشه فهم او دقّت وکړو، چې په غفلت او تساهل سره هم کوم داسې تکليف ورکوونکی حرکت له مونږ څخه صادر نشي، چې د هغه لامله د دنيا او آخرت په زيان او خسارت اخته او ککړ شو.

له دغه تکليف ورکوونکو حرکاتو څخه يوه ډېره سخته او لويه ګناه دغه ده چې: کوم سړی د دوی د مطهراتو ازواجو سره وروسته د دوی له وفاته خپله نکاح وتړي، يا د داسې نالايقې ارادې اظهار د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حيات کې وکړي، ظاهر دی چې د مطهراتو ازواجو مخصوص عظمت د رسول الله صلى الله عليه وسلم د تعلق له سببه موجود او قايم شوی دی، او دوی له روحاني حيثيته د ټولو مؤمنينو محترمې ميندې ټاکلې شوي دي، آيا وروسته له دې نه چې د کوم امّتي د نکاح په عقد کې راشي؛ د دوی هغه عزّت او احترام کما حقّه پاتې کېدی شي؟ وروسته له دوی نه کله چې دوی په کورني جنجالو او جګړو کې ولوېږي؛ نو د تعليم او تلقين او ديني أحکامو د تبليغ هغه اعلی غرض او مقصود څرنګه په اطمينان او آزادۍ سره تکميل او پوره کولی شي؟ چې د هغه لپاره في الحقيقت الله تعالی دوی د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زوجيت لپاره غوره کړي دي، او آيا کوم په انتهايي درجه سره بې حياء انسان به هم باور کولی شي چې له سيد البشر سره کومې بي بي صاحبې چې خپل عمر تېر کړی وي؛ هغه به د يوې شپې تېرولو له مخې هم بې د دوی له کوره په بل ځای کې اوسېدی شي؟ او هلته قلبي سکون او مسرّت هم حاصلولی شي؟ يا د هغه هيله په خپل زړه کې ګرځولی شي؟ خصوصًا څه وخت چې دغه خبره معلومه شوي هم وي چې دوی له هغو منتخبو او غورو خواتينو څخه دي چې د دوی په مخ د دنيا او آخرت دواړه لارې وروړاندې کړلې شوې؛ مګر هغوی په خپل ذوق او خوښې سره د دنيا پر عيش د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحبت او خدمت او د آخرت عظمت ته ترجيح او اهميت ورکړ، او د آخرت د لارې د اختيارولو اعلان يې وکړ.

لکه چې تاريخ راښيي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له وفاته وروسته دغو مطهّراتو ازواجو او جنتي مقدساتو خواتينو په څه عديم النظر زُهد، ورع، تقوی، صبر او توکل سره د الله تعالی په عبادت او خپلو معنوي اولادوو په هدايت او د اسلامي احکامو په نشر او اشاعت او په ديني خدمت کې مواظبت کاوه، او خپل ګرد اوقات يې په همدغو

مهمّاتو کې صرف او وقف کړل، او هيڅ يوې له دوی څخه په سهو او خطا سره هم دنيوي لذائذو او مشاغلو ته نه دي کتلي، او څرنګه داسې کوم خيال به د دوی په زړه کې تېرېده؟ حال دا چې الله تعالی د دوی په نسبت داسې لطف او مرحمت فرمايلي وو: ﴿إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُذْهِبَ عَنكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ وَيُطَهِّرَكُمْ تَطْهِيرًا﴾ او په دغه سره يې د دوی د تزکيې او د تطهير د کفالت بشارت ورکړی وو.

إِن تُبْدُوا شَيْئًا أَوْ تُخْفُوهُ فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٥٤﴾

که چېرې ښکاره کړئ کوم شی (تاسې په خوله) يا يې پټ وساتئ (په زړونو کې)؛ پس بېشکه الله دی پر هر څيز (د اعمالو ستاسې) ښه عالم.

تفسير: يعني مه په ژبه سره دغسې خبرې کوئ، او مه په زړه کې داسې وسوسې ته لاره ورکوئ ! ځکه چې د الله تعالی په نزد ظاهر او باطن او نور ګرد يو شان عيان دي، او هيڅ يو شی له ده څخه پټ نه دی، او دی پر ګردو اخبارو او اسرارو عليم او خبردار دی.

لَّا جُنَاحَ عَلَيْهِنَّ فِي آبَائِهِنَّ وَلَا أَبْنَائِهِنَّ وَلَا إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ إِخْوَانِهِنَّ وَلَا أَبْنَاءِ أَخَوَاتِهِنَّ وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ ۗ

نشته ګناه پر دغو ښځو په (مخامخ کېدلو د) پلرونو د دوی کې، او نه په ځامنو د دوی کې، او نه په ورونو د دوی کې، او نه په ځامنو د ورونو د دوی کې، او نشته (ګناه پر دغو ښځو په مخامخ کېدلو د) ځامنو د خويندو د دوی کې، او نه په ښځو د دوی (يعني په ښځو د نورو مؤمنانو)، او نه په هغو (وينځو) چې مالکان وي ښي لاسونه د دغو (ښځو لره).

تفسير: پاس د مطهراتو ازواجو سره د نارينو د مخامخ کېدلو ممانعت وشو، اوس دغه ښوولی کيږي چې دوی سره د دوی د محارمو مخامخ کېدل ممنوع نه دي، په دغه مورد کې کوم عمومي حکم چې د عمومي مستوراتو په نسبت د «النور» په سورت کې تېر شو؛ هم هغسې د مطهراتو ازواجو په نسبت هم حکم دی، د ﴿وَلَا نِسَائِهِنَّ وَلَا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُنَّ ۗ﴾ کومه تشريح چې مونږ هلته په (۱۰) رکوع کې کړې ده؛ هغه دې دلته بيا ولوسته شي !.

وَاتَّقِينَ اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿٥٥﴾

او وويرېږئ (ای ښځو !) له الله ! بېشکه الله دی پر هر شي باندې ښه شاهد عالم.

تفسير: يعني د پردې کوم احکام چې بيان شوي دي، او هغه استثناء چې په کې کړی شوې چې هغه په پوره ډول سره ملحوظ ولرئ، او لږ څه هم په هغه کې وړاندې وروسته لاندې باندې ونه کړئ ! او په ظاهر او باطن کې ښايي چې د الله تعالی د احکامو او د حدودو رعايت وکړئ، ځکه چې له الله جل جلاله څخه ستاسې هيڅ شی نه دي پټ: ﴿يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ﴾.

إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ۚ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٥٦﴾

بېشکه الله او پرښتې د الله درود وايي پر نبي باندې، ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو) درود ووايئ پر هغه (نبي) باندې او سلام (پرې) ووايئ په سلام ويلو سره.

تفسير: د «صلاة على النبي» مطلب دا دی: د نبي ثناء له تعظیم، رحمت، او عطوفت سره، بیا د هر یوه په طرف چې «صلاة» منسوب وي، سم د هغه د شان او مرتبې سره کومه ثناء، تعظیم، رحمت او عطوفت چې وړ او لایق وي؛ هم هغه به ترې مرادوه شي، لکه چې وایي: پلار پر ځوی او ځوی پر پلار، او ورور پر ورور مهربان دی، یا هر یو له بل سره مینه او محبت کوي، نو ظاهر ده د پلار کوم قسم محبت او مهرباني چې پر ځوی ده، د ځوی هغه قسم مینه او محبّت پر خپل پلار نه وي، او د ورور له ورور سره هم هغسې نشته، بلکه د دغو دواړو د مینې نوعیت بل شان دی، همداسې دلته يې هم قیاس وکړئ او وپوهېږئ! الله تعالی هم پر نبي «صلاة» لیږي، یعنې په رحمت او شفقت سره د ده ثناء، اعزاز او اکرام کوي، پرښتې هم پرې سلام لیږي، مګر د هر یوه صلاة، رحمت، تکریم او تعظیم سم د ده د شان، مقام او مرتبې سره دی، وروسته له دی نه پر مؤمنانو حکم دی چې تاسې هم پر نبي صلی الله علیه وسلم صلاة او رحمت ولېږئ!، ښايي د دوی حیثیت له دغو دواړو څخه بیخي جلا وي، علماوو فرمایلي دي چې د الله صلاة، رحمت لیږل او د ملائکو په منځ کې پر هغه ثناء ویل دي، او د پرښتو صلاة استغفار دی، او د مؤمنینو صلاة دعاء ده، په حدیث کې راغلي دي: کله چې دغه آیت نازل شو، صحابه وو رضي الله عنهم عرض وکړ: یا رسول الله! د سلام طریقه خو مونږ ته معلومه شوې ده، یعنې چې د لمانځه په تشّهد کې داسې لوستل کیږي: السلام علیك أیها النبي ورحمة الله وبرکاته، د صلاة طریقه هم مونږ ته ارشاد وفرمایئ! څو يې مونږ په لمانځه کې ولولو، رسول الله صلی الله علیه وسلم د دغه درود تلقین دوی ته وفرمایه: «اللهم صل علی محمد وعلی آل محمد کما صلیت علی إبراهیم وعلی آل إبراهیم إنک حمید مجید، اللهم بارک علی محمد و علی آل محمد کما بارکت علی إبراهیم وعلی آل إبراهیم إنک حمید مجید».

غرض دا دی چې الله تعالی مؤمنیو ته حکم ورکړ چې تاسې هم پر نبي صلاة ولېږئ، نبي علیه السلام دغه راوښود چې ستاسې صلاة لیږل دغه دي چې له الله جل جلاله څخه وغواړئ څو هغه زیات له زیات خپل رحمتونه تر أبد الآباد پورې تل ترتله پر نبي صلی الله علیه وسلم نازل وفرمایي!، ځکه چې د الله تعالی رحمتونه بېحده او بې نهایته دي.

إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَأَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿٥٧﴾

بېشکه هغه کسان چې ایذاء رسوي الله ته (په ولد او شریک) او (ایذاء رسوي) رسول الله (ته په نسبت د سحر، شعر، جنون)؛ لرې کړي دي دوی الله (له رحمته خپله) په دنیا او په آخرت کې، او تیار کړی يې دی دوی ته عذاب سپکوونکی.

تفسير: د الله تعالی ایذاء دغه ده چې د ده رسول الله صلی الله علیه وسلم ته څوک ایذاء ورسوي، یا د ده لوی جناب په نسبت نالایقې خبرې وکړي.

وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ بِغَيْرِ مَا اكْتَسَبُوا فَقَدِ احْتَمَلُوا بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٨﴾

او هغه کسان چې ایذاء رسوي مؤمنانو سړیو ته او مؤمنانو ښځو ته (په اتهام) په غیر د هغه کار چې کړی وي دوی (یعنې په ناکړي کار)؛ پس په تحقیق باروي دوی پخپل ځان غټ دروغ او ګناه ښکاره (چې د عقوبت موجب دی).

تفسير: دغه منافقان وو چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم بد به يې ویل، یا د دوی د مطهراتو ازواجو په نسبت به يې د دروغو خبرې اترې لکه چې د «النور» په سورت کې مسطورې دي کولې، وروسته له دې نه د ځینو هغو ایذاوو د انسداد په نسبت ځینې ښوونې کړی شوي دي، چې د دغو منافقینو له خوا به ځینې مسلمانانو ښځو ته رسېدې.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ قُل لِّأَزۡوَٰجِكَ وَبَنَاتِكَ وَنِسَآءِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ يُدۡنِينَ عَلَيۡهِنَّ مِن جَلَٰبِيبِهِنَّۚ

ای نبي ووایه ښځو ته دې او لوڼو ته دې او ښځو (د نورو) مؤمنانو ته چې خواره دې کاندي پر ټولو ځانونو خپلو له ټکریو پړونو خپلو څخه.

تفسیر: یعني وروسته د ټول بدن له پټولو څخه د ټکري څه برخه پر سر او څه برخه یې له سر ځني راښکته پر خپله څېره باندې وځړوئ، په روایاتو کې راغلي دي چې وروسته د دې آیت له نزوله مسلمانانو ښځو به خپلې څېرې او ګرد بدنونه په خپلو ټکریو سره پټول، او بیا به د باندې داسې وتلې چې یواځې به د دوی یوه ستر ګه ښکاریده، چې په هغه سره په لاره تلی شوې، له دې نه معلومه او ثابته شوه چې د فتنې او فساد په وخت کې ښایي چې آزادې اصیلې ښځې خپله څېره هم پټه کړي، او وینځې د شدیدو ضروریاتو له سببه پر دغه نه دي مکلّفې، ځکه چې د دوی په کارو او چارو کې تکلیف او حرج پیښیږي.

ذَٰلِكَ أَدۡنَىٰٓ أَن يُعۡرَفۡنَ فَلَا يُؤۡذَيۡنَۗ وَكَانَ ٱللَّهُ غَفُورٗا رَّحِيمٗا ٥٩

دغه (پټول د بدن) نژدې دي دې ته چې وبه پېژندی شي دوی (چې اصیلې دي)؛ پس ایذاء به ونشي رسولی دوی ته (په زعم د وینځو)، او دی الله ښه ښنونکی (د خطیّاتو) ډېر رحم کوونکی.

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي چې: «ښه وپېژندله شي چې وینځه نه ده بلکه بي بي ده، د ننګ او ناموس مېرمن ده، بدبخته او بدناموسه نه ده، نېک بخته ده بد ذاته نه ده، څو بدنیته خلق هغوی ته لاس ونه غځوي، او نقاب یې د هغه ښنبه کېښوده، دغه د بهترۍ حکم دي، وروسته یې وفرمایل چې: الله ښنونکی مهربان دی»، یعنې که سره له دومره اهتمامه کوم تقصیر پاتې شي؛ نو د الله تعالی له مهربانی نه د ښښنې توقع شته، (تکمیل)، دغه خو د آزادو ښځو په نسبت انتظام وو، څو هر څوک دوی وپېژني او د دوی ربړولو ته زړه ښه نه کړي، او بیا د دروغو حیله ورته جوړه نه کړي، وروسته له دې د عمومي ګوتې وروړلو او لاس غځولو په نسبت تهدید او ویرول دي، اعم له دې چې له کومې مېرمنې سره وي، یا له کومې وینځې سره.

لَّئِن لَّمۡ يَنتَهِ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ

قسم دی که منع نشول منافقان (له نفاق څخه) او هغه کسان چې په زړونو د دوی کې رنځ دی (د زنا کولو ـ له بد کارۍ خپلې نه).

تفسیر: یعنې پر هغو خلقو چې د بد نظرۍ او شهوت پرستۍ مرض لګېدلی دی.

وَٱلۡمُرۡجِفُونَ فِي ٱلۡمَدِينَةِ

او بدې آوازې ګډوونکي په (ښار د) مدینې کې.

تفسیر: د غه غالبًا یهودان دي، یا ممکن دي چې هغه منافقان ترې مراد وي چې علی الأکثر به یې دروغ خبرې شایع کولې، او د اسلام او د مسلمانانو په خلاف به یې شایعات او انتشارات کول.

لَنُغۡرِيَنَّكَ بِهِمۡ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَآ إِلَّا قَلِيلٗا ٦٠ مَّلۡعُونِينَۖ أَيۡنَمَا ثُقِفُوٓاْ أُخِذُواْ وَقُتِّلُواْ تَقۡتِيلٗا ٦١

نو خامخا به و ګمارو مسلّط به کړو مونږ خامخا تا پر دوی، بیا به همسایه توب ونه کړي (دوی) د تا په دغه (مدینه کې) مګر لږ وخت. رټلي ترټلي شوي هر چېرې چې وموندلی شي؛ وبه نیولی شي، او وبه وژلی شي په وژلو (د خوارۍ سره).

تفسیر: یعنې که دغه بد سړي د خپلو دغو حرکاتو څخه لاس وانخلي؛ نو مونږ به تا پر هغوی مسلط کوو، چې په څو ورځو کې تاسې هغوی له مدینې منورې څخه د باندې و شړئ، او هومره ورځې چې دلته اوسیږي؛ د ذلت په صفت کې به پاتې وي، لکه چې دغه یهودان ګرد وشړل شول، او منافقانو به د دغو ویرولو او ډارولو په اثر ښايي خپله رویه بدله کړي وي؛ نو ځکه له سزا څخه يې نجات وموند.

سُنَّةَ اللَّهِ فِي الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلُ ۖ وَلَن تَجِدَ لِسُنَّةِ اللَّهِ تَبْدِيلًا ﴿٦٢﴾

دا يوه لاره ايښې ده الله لاره په حق د هغو (منافقانو مرجفانو) کې چې تېر شوي دي پخوا له دې نه، او له سره به نه مومې ته لارې د الله ته هيڅ تبديل تغيير.

تفسیر: یعنې عادت الله په همدې دوام لري، هغه کسان چې د انبياء الله په مقابل کې شرارتونه کوي، او فتنه او فساد خوروي؛ همداسې ذليل، خوار او هلاک کړي، يا دغه مطلب دی چې په پخوانيو کتابونو کې همدغه حکم شوی دی چې مفسدان له خپله منځه د باندې وباسئ ! لکه چې شاه صاحب (رحمه الله) يې له تورات څخه نقلوي.

يَسْأَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ ۖ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِندَ اللَّهِ ۚ وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُونُ قَرِيبًا ﴿٦٣﴾

پوښتنه کوي له تا څخه خلق له قيامت (د راتلو چې کله دی؟) ووايه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه همدا خبره ده علم د قيامت (خاص) په نزد د الله دی، او څه شي پوه کړی يې ته (په قيام د قيامت؟، یعنې ته ترې بېخبره يې، بيا نو ورته ووايه) ښايي چې قيام د قيامت دی نژدې.

تفسیر: اګر که د قيامت د صحيح وخت تعيين الله هيچا ته نه دی ښوولی، مګر دلته يې د هغه د قُرب په طرف اشاره فرمايلې ده، په حديث کې راغلي دي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم خپله د شهادت او وسطی ګوتې پورته کړې، او ورسره يې وفرمايل: «أنا والساعةُ كهاتين» «زه او قيامت د دغو ګوتو په شان يو»، یعنې هومره چې وسطی ګوته د سبابې په نسبت وړاندې ختلې ده؛ نو زه له قيامت څخه هم دغومره قدر ړومبی راغلی يم، قيامت ډېر نژدې او په ما پسې ژر راتلونکی دی.

إِنَّ اللَّهَ لَعَنَ الْكَافِرِينَ وَأَعَدَّ لَهُمْ سَعِيرًا ﴿٦٤﴾

بېشکه الله رټلي دي کافران (منکران د بعث له رحمت خپله)، او تيار کړی يې دی دوی ته سختې لمبې وهونکی اور.

تفسیر: یعنې د دغه لعنت اثر دی چې دوی داسې لا طائل سوالات کوي، او د آخرې خاتمې او د عاقبت هيڅ فکر نه کوي.

خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ لَّا يَجِدُونَ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿٦٥﴾ يَوْمَ تُقَلَّبُ وُجُوهُهُمْ فِي النَّارِ

په دغه حال کې چې همېشه به اوسيږي په دغه اور کې تل ترتله، نه به مومي دوی هيڅ دوست (چې يې ترې وباسي) او نه کوم مددګار (چې عذاب ترې لرې کړي). (ياده کړه) هغه ورځ چې چورلولی به شي مخونه د دوی په اور کې.

تفسیر: یعنې پړمخې نسکور غورځولی کيږي، او د دوی څېرې به په اور کې لاندې باندې کيږي.

يَقُولُونَ يَٰلَيْتَنَآ أَطَعْنَا ٱللَّهَ وَأَطَعْنَا ٱلرَّسُولَا۠ ﴿٦٦﴾

وايي به دوى: اى كاشكې مونږ اطاعت كړى وى د الله، او اطاعت كړى وى مونږ د رسول (د الله).

تفسير: په دغه وخت به ارمان او افسوس كوي چې كاشكې مونږ په دنيا كې د الله او د رسول الله صلى الله عليه وسلم پر وينا غوږ ايښي وى، او پر هغه مو عمل كړى وى، څو له دغه بدې ورځې سره مخامخ شوي نه وى.

وَقَالُوا۟ رَبَّنَآ إِنَّآ أَطَعْنَا سَادَتَنَا وَكُبَرَآءَنَا فَأَضَلُّونَا ٱلسَّبِيلَا۠ ﴿٦٧﴾ رَبَّنَآ ءَاتِهِمْ ضِعْفَيْنِ مِنَ ٱلْعَذَابِ وَٱلْعَنْهُمْ لَعْنًا كَبِيرًا ﴿٦٨﴾

او وايي دوى: اى ربه څمونږ ! بېشكه مونږ اطاعت كړى وو مونږ د مشرانو خپلو، او د غټانو خپلو، پس وركه كړه دوى له مونږ څني سمه لاره. اى ربه څمونږ ! وركړه دوى ته دوچنده له عذابه، او لرې كړه دوى له رحمته خپله رټلو ترټلو لويو سره.

تفسير: دغه به د قهر له شدّته وايي چې: څمونږ دغو دنيوي سردارانو، مشرانو او مذهبي پېشوايانو مونږه وغولولو، او په دروغو او فريبو يې په دغه غم او مصيبت كې اخته كړو، د همدوى په لمسون د حق له لارې څخه بې لارې شو، نو كه اوس مونږ ته سزا راكوله كيږي؛ ښايي دوى ته څمونږ په نسبت دوچنده سزا وركړه شي، او هغه لعنت او زحمت چې پر مونږ نازليږي؛ له هغه څخه دې زيات پر دوى هم نازل شي، ګواكې د دوى پر دوچنده سزا وركولو سره د خپل زړه يخول غواړي، په همدغه مضمون يو بل آيت د «الأعراف» په (۴) ركوع كې تېر شوى دى، هلته دې د دوى د دغې غوښتنې ځواب هم شته، هغه دې هلته بيا ولوستل شي !.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَكُونُوا۟ كَٱلَّذِينَ ءَاذَوْا۟ مُوسَىٰ فَبَرَّأَهُ ٱللَّهُ مِمَّا قَالُوا۟ ۚ وَكَانَ عِندَ ٱللَّهِ وَجِيهًا ﴿٦٩﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى (يعنې اى مؤمنانو !) مه كېږئ په شان د هغو كسانو چې ايذاء يې رسولې وه موسى ته؛ پس پاك كړ دغه (موسى لره) الله له هغو دروغو چې دوى ويل، او وو (موسى) په نزد د الله كې وجيه (مخور خاوند د عزّت).

تفسير: يعنې تاسې داسې كوم كار يا خبره مه كوئ چې له هغه نبي عليه السلام ته ايذاء ورسيږي، دغه ايذاء نبي عليه السلام ته هيڅ زيان او ضرر نشي رسولى، ځكه چې دى د الله تعالى په دربار كې لوى عزّت او پت لري، او الله جل جلاله به له دغه څني هغه د اذيت ګردې خبرې لرې كوي، مګر په هغه سره ستاسې آخرت خرابيږي، وګورئ چې د موسى عليه السلام په نسبت خلقو څرنګه د اذيت خبرې كولې، مګر الله تعالى د موسى عليه السلام د وجاهت او مقبوليت له وجې د هغو ټولو ابطال وفرمايه، او د موسى عليه السلام بې داغي يې ثابته كړه، په رواياتو كې راغلي دي چې ځينو مفسدينو پر موسى عليه السلام تهمت لګاوه چې هارون عليه السلام يې بېديا ته بيولى دى او هلته يې وژلى دى، نو الله تعالى په يوه خارقه طريقه سره د هغه ترديد وفرمايه، او په صحيحينو كې راغلي دي چې موسى عليه السلام د حياء له وجې د هغې زمانې د خلقو د رواج او دستور په خلاف به په پټ ځاى كې تل په پټه غسل كاوه، خلقو به ويل چې: د دوى په بدن كې هرومرو څه عيب دى، يا د برص داغ لري، يا يې خصيې پړسېدلې دي، يوه ورځ موسى عليه السلام غسل كاوه او خپل كالي يې ايستلې پر يوې تيږې يې ايښې وو، هغه تيږه د دوى له كاليو سره وتښتېده، موسى

عليه السلام بربنډ له اوبو څخه ووت او خپله همسا يې واخيسته، او په هغې تيږه پسې پر منډو شو، په دغه وخت کې ټولو خلقو دوی ته کتل، او ګردو ته دغه حقيقت ورڅرګند شو، چې د دوی مبارک وجود بيخي پاک او بې عيبه دی.

تنبيه: د موسی عليه السلام بربنډ ځغلېدل په تيږې پسې د مجبوريت لامله وو، او ښايي دا يې هم خيال کې نه وي ګرځيدلي چې دغه تيږه به برابره هغې لويې مجمعې ته ورځي، او هلته به درېږي، پاتې شو د تيږې دغسې حرکت؛ نو هغه د فوق العادت په ډول وو.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَقُولُوا۟ قَوْلًا سَدِيدًا ﴿٧٠﴾ يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَٰلَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَمَن يُطِعِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧١﴾

اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني اى مؤمنانو !) وويرېږئ له عذاب د الله، او ووايئ خبره سمه محکمه رښتيا. چې نېک صالح کړي (الله) تاسې ته عملونه ستاسې، او وبښي (الله) تاسې ته ګناهونه ستاسې، او هر چا چې اطاعت وکړ د الله او د رسول د (الله)؛ پس په تحقيق بريالى (کامياب) شو په بري ډېر لوی سره.

تفسير: يعني اى مؤمنانو ! له الله تعالى څخه وويرېږئ او وپوهېږئ چې سمې خبرې کوونکي ته د ډېرو ښو او مقبولو اعمالو توفيق ور په برخه کيږي، او ګناهونه او تقصيرات يې ورمعافيږي، په حقيقت کې يوائې د الله تعالى او د رسول الله صلى الله عليه وسلم په اطاعت کې د حقيقي بري او کاميابۍ راز پټ دی، هر هغه څوک چې دغه لاره غوره کوي؛ په مراد رسيږي.

إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ ۖ إِنَّهُۥ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ﴿٧٢﴾

بېشکه وړاندې کړ مونږ امانت (ثواب ـ عقاب) پر اسمانونو او پر ځمکه او غرونو (کله چې مو پيدا کړ په دوی کې فهم او نطق)؛ پس منع راوړه دوی له دې چې پورته کړي هغه (د امانت بار) او وويرېدل دوی له هغه (امانت)، او پورته کړ هغه (د امانت بار) انسان، بېشکه چې دغه (انسان) دی ظالم ډېر نادان (په عاقبت خپل).

تفسير: يعني انسان پر خپل ځان لوی ظلم او ستم وکړ، د هغه بار او پيټي په اوږو اخيستلو څخه چې اسمانونو، ځمکې او غرونو د خپلې ناتوانۍ او عجز اظهار وکړ، چې پورته کولی يې نشو؛ دغه ناپوه انسان هغه پر خپلو اوږو واخيست.

اصلي خبره دا ده چې الله تعالى د خپل يو خاص امانت کېښودل د مخلوقاتو په کومه نوعه کې اراده وفرمايله، چې که هغه غواړي؛ نو دغه امانت په خپلې سعي او کسب او د مټ په قدرت او قوّت وساتلی شي، بلکه تزييد او ترقي هم ورته ورکړه شي، هغه افراد چې هغه امانت په پوره ډول سره محفوظ ساتي او ترقي ورته ورکړي؛ پر هغو انعام او اکرام وکړي، او هر هغه چې په غفلت او شرارت سره هغه ضايع کړي؛ نو هغه ته به سزا ورکړه شي، او هغه کسان چې په دغه مورد کې لږ شان قصور وکړي؛ له هغوی سره د عفوې او د ښنلو معامله وکړه شي، ځما په خيال دغه امانت د ايمان او د هدايت يو تخم دی، چې د بنيادمانو په زړونو کې شيندلی او کرلی شوی دی، چې هم هغه ته «مابه التکليف» هم ويلی شو، «لا إيمان لمن لا أمانة له» چې د دغه د ساتنې او په حفاظت کې له مداومت څخه د ايمان ونه زرغونيږي، ګواکې د بني آدميانو قلوب د الله تعالى ځمکه ده، چې تخم هم په هغو کې پخپله الله شيندلی (کرلی) دی، د باران ورولو لپاره يې د رحمت وربخې هم لېږلې دي، چې د هغوی له سينو ځنې د الله تعالى د وحي باران هم ورېدلی دی، د هر انسان فريضه

دا ده چې د ايمان دغه تخم چې د الله تعالى امانت دی؛ ضايع نه کړي، بلکه په پوره سعی، کوښښ، سره د هغه پرورش او پالنه وکړي، او ډېر زيـات دقّت دې وکړي، څو په سهو، خطا اوغلطی هم دغه تخم ونه سوځيږي، او ضايع نشي.

لِّيُعَذِّبَ اللَّهُ الْمُنَافِقِينَ وَالْمُنَافِقَاتِ وَالْمُشْرِكِينَ وَالْمُشْرِكَاتِ وَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٧٣﴾

(دغه د امانت عرض د دې لپاره وو) چې عذاب ورکړي الله منافقانو سړيو او منافقاتو ښځو ته، او مشرکانو سړيو او مشرکاتو ښځو ته، او رجوع په رحمت سره وکړي الله پر مؤمنانو سړيو او مؤمناتو ښځو، او دی الله ښه بخښونکی (د خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی.

تمت سورة الأحزاب بعون الله الملك الوهاب، فلله الحمد والمنة.



# سُورَةُ سَبَإٍ

«د (سبأ) سورت مكي دى، پرته له (۶) آيته څخه چې مدني دي (۵۴) آيتونه او (۶) ركوع لري، په نزول كې (۵۸) او په تلاوت كې (۳۴) سورت دى، وروسته د «لقمان» له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي الْآخِرَةِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيمُ الْخَبِيرُ ①

ټوله ثناء صفت خاص الله لره دي، هغه چې خاص هغه ته دي هر هغه (شيان) چې په اسمانونو كې دي، او هر هغه شيان چې په ځمكه كې دي (سره له اسمانونو او ځمكې ملكا خلقًا عبيدًا)، او خاص همدغه (الله) لره ده ټوله ثناء صفت په آخرت كې (لكه چې په دنيا كې هم ده)، همدغه (الله) ښه حكمت والا ښه خبردار دى.

تفسير: يعني ګرد محاسن او محامد او تعريف هغه الله جلّ جلاله ته دي چې واحد احد دى، او بې د نورو له شركته د ګردو اسمانونو او د ځمكو د شيانو مالك او خالق دى، او په نهايت حكمت او خبردارۍ سره د دوى انتظام او تدبير كوي، او دغه سلسله يې چټي نه ده پيداكړې، د داسې حكيم او دانا په نسبت دغه ګمان نشي كېدى، ضرور دغه نظام بالآخر پر كومې اعلى نتيجې منتهي كېدونكى دى، چې هغه ته آخرت وايي، او څرنګه چې همدى په دنيا كې يواځې د ټولو تعريفاتو مستحق دى، په آخرت كې هم يواځې همدى د ټولو تعريفاتو مستحق دى، بلكه دلته خو ظاهرًا د نورو كسانو هم لږ څه تعريف كېدى شي، ليكن هلته نور ګرد وسايط او پردې لرې كيږي، او هر شى ليدل كيږي، هغه ګرد د همده له طرفه وي، نو ځكه صورتًا او معنًا او حقيقتًا بلكه له هر حيثيته يواځې د هم هغه مطلق محمود تعريف پاتې كيږي.

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا ۚ

معلوم دي (الله ته) هر هغه شى چې ښكته ننوځي په ځمكه كې او هر هغه شى چې بيرون راوځي له دغې (ځمكې) څخه، او هر هغه څيز چې راښكته كيږي له اسمانه، او هر هغه شى چې پورته خيژي په دغه (اسمان) كې.

تفسير: يعنې په اسمان او ځمكه كې هيڅ يو لوى او وړوكى داسې څيز نشته، چې د ده له علم څخه خارج وي، هر هغه شى چې په ځمكه كې ښكته ننوځي، مثلاً حشرات، خوځندې، د نباتاتو تخم، د باران اوبه، د مړيو اجساد او هر هغه شيان چې له ځمكې څخه د باندې راوځي او بهر كيږي مثلا: زراعت، نباتات، معدنيات او نور، او هغه شيان چې د اسمان له جانبه راښكته كيږي لكه: باران، وحي، تقدير، پرښتې او نور، او هغه شيان چې پورته خيژي اسمان ته مثلا: روح، دعاء، اعمال، ملائكك او نور، پر دغو ګردو انواعو او جزئياتو د الله تعالى علم محيط دى.

وَهُوَ الرَّحِيمُ الْغَفُورُ ②

او همدغه (الله) ډېر رحم كوونكى دى، ښه ښنونكى دى (د خطيّاتو).

تفسير: يعنې دغه ګرد د ژوندون رونق ښايست د الله تعالى له رحمته او ښښنې څخه دى، که د بندګانو د دغې ناشکرۍ او د حق نه پېژندلو په اثر لاس په لاس د دوى په نيونو باندې لاس پورې کېدى؛ نو دغه ګرد رونق او ښايست به په يوه لمحه کې ختمېده: ﴿وَلَوْ يُؤَاخِذُ اللَّهُ النَّاسَ بِمَا كَسَبُوا مَا تَرَكَ عَلَىٰ ظَهْرِهَا مِن دَابَّةٍ﴾ (د فاطر سورت (۴۵) آيت (۵) رکوع (۲۲) جزء).

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ ۖ قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ

او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي چې را به نشي مونږ ته قيامت، ووايه (اى محمده ! دوى ته چې ولې به رانشي) بلکه رابه شي، قسم دى څما په رب خپل چې خامخا رابه شي هرومرو (لازمًا) دا قيامت تاسې ته.

تفسير: يعنې هغه انسان چې د ده د صدق او امانت اقرار له نورو ګردو موجوداتو څخه ړومبى وو؛ اوس له براهينو څخه د ده صداقت په پوره ډول سره ښکاره شو، په مؤکد قسم سره د الله تعالى له طرفه خبر ورکوي چې خامخا قيامت راتلونکى دى، نو بيا يې هيڅ علّت او سبب نه دى معلوم، چې ولې يې دوى نه مني، هو ! که کومه محال خبره يا له حکمت څخه مخالفه کومه خبره يې کړې وى؛ نو د انکار ځاى به په کې وو، ليکن دغه خو نه محاله ده، او نه له حکمت څخه مخالفه ده، نو بيا له هغه څخه انکار که ضد او عناد او سرتمبګي نه ده؛ نو څه ده؟.

عَالِمِ الْغَيْبِ ۖ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا أَصْغَرُ مِن ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿۳﴾

(هسې رب) چې عالم دى په غيبو، نه پټيږي له ده په اندازه د يوې ذرې په اسمانونو کې او نه په ځمکه کې، او نه وړوکى له هغې ذرې، او نه لوى (ترې) مګر (چې دا ټول ليکلي پراته دي) په کتاب ښکاره (لوح محفوظ) کې.

تفسير: يعنې په هم هغه عالم الغيب قسم دى چې د ده له محيط علم څخه د اسمان او د ځمکې هيڅ يو لوى يا وړوکى شى، يا يوه ذره يا له ذرې څخه وړوکى يو شى هم نه دى پټ، او نه هيڅ شى ترې غائبيږي، ښايي چې دغه يې ځکه فرمايلي وي چې د قيامت د وخت تعيين مونږ له سره نشو کولى، د هغه علم له هغه چا سره دى چې د هغه له علم څخه هيڅ يو شى خارج نه دى، مونږ ته هغومره خبر چې هغه راکړى دى؛ هغه مو بې له زيادته او تنقيصه درورسوه، او په دې سره د هغې خبرې ځواب هم وشو: ﴿وَقَالُوا أَإِذَا ضَلَلْنَا فِي الْأَرْضِ﴾ الآية - يعنې کله چې څمونږ ذرات په ځمکه کې منتشر شي، بيا به څرنګه سره يو ځاى کيږي؟ نو دغه يې راوښوول چې هيڅ يوه ذره هم د الله تعالى له علمه نه ده غائبه، او پخوا يې دغه راښوولي وو چې د اسمان او د ځمکې پر هر يوه شي د ده قبضه ده، نو بيا به ده ته څه مشکل وي چې ستاسې ګرد منتشر ذرات يو ځلې سره راټول کړي.

تنبيه: له ښکاره کتاب څخه «لوح محفوظ» مراد دى، چې په هغه کې هر شى سم د الله تعالى له علمه سره ثبت دى.

لِّيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۚ أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ﴿۴﴾ وَالَّذِينَ سَعَوْ فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِّن رِّجْزٍ أَلِيمٌ ﴿۵﴾

لپاره د دې چې جزا ورکړي (الله) هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړى دى او کړي يې دي ښه (عملونه) دغه (نيکوکاران مؤمنان چې دي؛) شته دوى ته مغفرت بخښنه او رزق روزي ښه (د

عزت چې جنّت دی). او هغه کسان چې سعي کوښښ کوي په (ابطال د) آیتونو (د قرآن) ځمونږ په دې حال چې عاجز کوونکي وي د الله (په زعم خپل)؛ دغه کسان شته دوی ته عذاب له عذابه دردناکه څخه.

تفسیر: یعنې د قیامت راتلل ځکه ضروري دي چې خلقو ته د دوی د نېکی او بدۍ نتیجه او ثمره ورکړه شي، او د الله تعالی د ټولو صفاتو کامل ظهور په عمل راشي.

تنبیه: «هغه کسان چې سعي او کوښښ کوي په باطلولو دِ آیتونو دِ قرآن ځمونږ» مطلب دا دی چې ځمونږ د آیتونو په ابطال او د خلقو په ممانعت کې د هغو له قبول څخه قولاً او فعلاً کوښښ کوي، او د دغه مقصد د په مخ بیولو لپاره ټینګ ولاړ دي، ګواکې دوی (العیاذ بالله) داسې غواړي چې الله تعالی عاجز کړي، او پر او مغلوب یې وګرځوي، او داسې ګڼي چې دوی د ده په لاس کې راتلونکي نه دي، او هرومرو له ده ځنې خپل ځان بچ کوي.

﴿وَيَرَى الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِي أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ هُوَ الْحَقَّ وَيَهْدِي إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ۝﴾

او (بل لپاره د دې لیکلي پراته دي په لوح محفوظ کې) چې ویني هغه کسان چې ورکړی شوی دوی ته علم فهم هغه (قرآن) چې نازل شوی دی تاته له (جانبه د) رب ستا؛ هم هغه حق دی، او سمه لاره ښیي طرف د لارې (د هغه الله ته چې) ښه زبردست ډېر ستایلی شوی دی.

تفسیر: یعنې ځکه قیامت راتلونکی دی، څو هغه کسان چې پرې یقین او باور لري هغو ته عین الیقین حاصل شي، او په خپلو سترګو سره هم د هغه وقوع او قیام ویني، او ښه وپوهیږي چې د لوی قرآن بیان څرنګه بې له تزییده او تنقیصه صحیح ثابت شو، او بېشکه چې قرآن هم هغه لوی او زبردست کتاب دی چې الله ته مو رسوي، او سمه صافه لاره راښیي، ځینې مفسرین د ﴿وَيَرَى الَّذِينَ﴾ الآیة ـ مطلب داسې اخلي چې د ﴿وَالَّذِينَ سَعَوْ فِىٓ ءَايَـٰتِنَا مُعَـٰجِزِينَ﴾ په برخلاف هغه کسان چې پوهان او اهل العلم دي، اعمّ له دې چې مسلمانان وي که کتابیان، هغوی پوهیږي او ویني چې د قیامت او نورو په متعلق د قرآن مجید بیان بیخي صحیح دی، او انسانانو ته د وصول الی الله ښه طریقه ورښیي، او په سمه صافه لاره یې برابروي.

﴿وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَىٰ رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ۝ أَفْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أَم بِهِ جِنَّةٌ﴾

او وایي هغه کسان چې کافران شوي دي: آیا (وښیو) دلالت وکړو تاسې ته په یو سړي چې خبر درکوي تاسې ته کله چې ذرې ذرې کړی شئ تاسې په کامل ذره ذره کېدلو سره، بېشکه چې تاسې خامخا په پیدایښت نوي کې یئ. آیا له خپله ځانه تړلي دي (محمد) پر الله باندې دروغ؟ یا ورپورې لېونتوب دی؟.

تفسیر: د قریشو کفّارو د رسول الله صلی الله علیه وسلم په شان کې دغسې ګستاخي او سپین سترګي کوله، یعنې راځئ چې مونږ تاسې ته هغه سړی دروښیو چې وایي وروسته له مړ کېدلو او پرېښدلو او وراسته کېدلو او خاورو او دوړو کېدلو څخه بیا له خاورو څخه راټولېږئ او له تاسو ځنې هم داسې روغ جوړ انسانان پیدا کیږي، او بیا به هم داسې ژوندي له قبرونو راپاڅولی کېږئ، ښه نو پر داسې چټي او مهملو خبرو څوک یقین او باور کولی شي؟ او څرنګه یې منل امکان لري؟ له دوو حالو څخه خالي نه دی؛ یا خو دغه شخص عمداً په قصد سره پر پاک الله دروغ تړي، چې ده

داسې خبر راکړی دی، که نه لېونی او سودايي دی، او دماغ يې پخپل ځای کې نه دي، نو ځکه دا هسې اپلتې او چټې خبرې کوي (العياذ بالله).

بَلِ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلَٰلِ الْبَعِيدِ ۝

(نو فرمايي الله ترديداً: داسې نه دي) بلکه هغه کسان چې ايمان نه راوړي په آخرت په عذاب کې به وي (په عُقبی کې) او په ګمراهي لويه کې (لوېدلی دی په دنيا کې).

تفسير: يعنې نه دروغ دي او نه جنون، بلکه خالي دغه خلق پخپله د عقل، پوهې، صدق او صواب له لارې څخه ښوييدلي دي، او له حق او يقين څخه ډېر لرې لويدلي دي، چې دغسې چټې خبرې کوي او په خپل دغه انکار او تکذيب سره خپل ځان په آفت او عذاب کې اخته کوي، في الحقيقت دغه ډېر لوی عذاب دی چې د انسان دماغ په دغه اندازه سره خراب او مختل شي؛ چې دی د الله تعالی انبياوو ته مفتري، مجنون او نور شيان ووايي (العياذ بالله).

اَفَلَمْ يَرَوْا اِلٰى مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ ؕ اِنْ نَّشَاْ نَخْسِفْ بِهِمُ الْاَرْضَ اَوْ نُسْقِطْ عَلَيْهِمْ كِسَفًا مِّنَ السَّمَآءِ ؕ

آيا نه ګوري (دا کافران) هغه ځيز ته چې په مخ کې د دوی دی او هغه ځيز ته چې وروسته د دوی دی له اسمانه او له ځمکې (چې دوی په کې محاط وي)، که چېرې اراده وفرمايو؛ نو ځيري به کړو په دوی ځمکه (او په کې به يې ډوب کړو په شان د قارون)، يا به وغورځوو پر دوی باندې يوه ټوټه له اسمانه.

تفسير: آيا دغه خلق ړانده شوي دي چې اسمان او ځمکې ته هم نه ګوري، او خپل شاوخوا ته هم سترګې نه غړوي، چې پر موجوداتو خپل عقل او فکر وچلوي، پر دغې خبرې باندې خو پخپله دوی هم قايلان دي چې د دوی او د ګردو علوياتو او سفلياتو خالق الله دی، بيا نبه آيا هغه الله ته چې د دغو شيانو مالك او خالق دی؛ د دغو شيانو خرابول او ماتول او بيا جوړول هغه ته څه سختي او اشکال لري؟ او هغه ذات ته چې داسې عظيم الشأن اجسام جوړولی شي، او لاندې باندې او ويجاړولی يې شي؛ د انساني جسم تخريب، تفکيك او تجزيه او بيا يې سره ټولول، ژوندي کول او پاڅول څه اشکال لري؟ آيا دغه خلق له دې نه نه ويرېږي چې د الله تعالی پر ځمکه او تر اسمان لاندې اوسيږي او بيا داسې د بې ادبی او ګستاخی خبرې کوي، او بېځايه خپلې ژبې خوځوي، حال دا چې که الله تعالی اراده وفرمايي؛ په يوه رپه کې به دوی يا په ځمکه خښوي، يا به له اسمانه يوه ټوټه پرې وغورځوي او دوی به بيخي سپېره او فنا کړي، او په همدغه دنيا کې به د قيامت يوه وړوکې نمونه دوی ته وښيي.

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لِّكُلِّ عَبْدٍ مُّنِيْبٍ ۝

بېشکه په دغه (کتلو د پاس او ټيټ او خسف او اسقاط) کې خامخا دلائل دي لپاره د هر بنده رجوع کوونکي (الله ته).

تفسير: يعنې هر هغه بنده چې له عقل او انصاف څخه کار واخلي؛ نو د الله تعالی په طرف يې رجوع کيږي، ځکه چې يوه او عاقل انسان ته په علوياتو او سفلياتو او ما فيهما کې ډېر زيات د قدرت لويې نښې او د لائل موجود دي، د دغه منظم او ډك له حکمته نظام له ليدلو څخه پوهيږي چې هرومرو دغه ګرد يوه ورځ خپلې عُليا او اکملې نتيجې ته

رسېدونکی دی، چې د هغې نوم «دار الآخرة» دی، کله چې دوی دغه تصّور وکړي؛ نو زيات له زياته خپل مالك او خالق الله تعالی ته رجوع کوي، او د هغو علوي او سفلي نعماوو چې ورته رسيږي؛ شکريه اداء کوي، له دغو بندګانو څخه د ځينو تذکره پاك الله داسې فرمايي چې:

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا دَاوٗدَ مِنَّا فَضْلًا ۖ يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرَ ۚ

او خامخا په تحقيق ورکړی وو مونږ داود ته له جانبه خپله فضل (لويي پر نورو، وموفرمايل غرونو ته چې) ای غرونو ! راوګرځوئ (ښه) غږونه خپل له ده سره (په وخت د تسبيح کې، او له ده سره تسبيح ويل) مرغانو هم.

تفسير: يعنې الله تعالی داود عليه السلام ته له نبوّت سره غير معمولي سلطنت هم ورعنايت فرمايلی وو، داود عليه السلام به کله کله بيديا او صحرا ته هم ووت، او هلته به د الله تعالی په ذکر او ياد مشغولېده، او د الله تعالی له خوفه به يې ژړل، او په تسبيح او تهليل به مشغولېده ، او په خپل هغه ښکلي غږ سره به چې ضرب المثل دی؛ د (زبور) په لوستلو مصروفېده، د ده د تسبيح او تهليل د عجيب او غريب تأثير په سبب به له ده سره غرونو هم تسبيح لوستل، او ګرد مرغان به هم د دوی په شاوخوا کې سره ټولېدل، او د ده په شان هغوی به هم تسبيح او تهليل وايه، که د غرونو له تسبيح څخه د ده د غږ محض عکس العمل (انګی) مراد وي؛ يا هغه عمومي تسبيح مراد وی چې هر شی يې د خپل حال يا د قال په ژبه سره اداء کوي يا يې وايي؛ نو د داود عليه السلام د مخصوص فضل او شرف په ذيل کې به د دغې خبرې تذکره بيخي مهمله او بې معنی وی (العياذ بالله)، نو معلومه شوه چې مراد ترې تسبيح ويل دي، د ﴿يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ﴾ حکم تکويني دی.

وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ ۙ اَنِ اعْمَلْ سٰبِغٰتٍ وَّقَدِّرْ فِي السَّرْدِ

او پسته کړې وه مونږ ده ته اوسپنه. (امر وفرمايه الله داود ته داسې) چې جوړوه ځغرې ارتې اوږدې، او اندازه کوه په اوبدلو کې (چې حلقې يې سره برابرې وي).

تفسير: د داود عليه السلام په حق کې يې اوسپنه لکه موم پسته وګرځوله، او ده به بې د اور د صناعيه وو آلاتو له مرستې اوسپنه په هر شان سره چې غوښته؛ کږوله او تاووله به يې، او پنډه او نرئ کوله، او له هغې ځنې به يې ځغرې او نور دقيق او نفيس آلات او ادوات جوړول او پلورل به يې، او له هغې څخه به يې د خپل قوّت او معاش وسايل برابرول، او پر اسلامي بيت المال به يې خپل د اعاشې بار نه غورځاوه، وايي چې: کړئ لرونکي ځغرې ړومبی ځلي د ده له لاسه ايجاد او اختراع وموندله، چې ارتې او پراخې وې، الله تعالی ده ته امر ورکړ چې پراخې او ارتې ځغرې جوړوه ! او د هغو حلقې او کړئ په ښه نظم او ترتيب سره ونښلوه ! چې د خپل لويوالي ـ وړوکوالي او نريوالي په اعتبار يو له بل سره متناسبې وي.

وَاعْمَلُوْا صَالِحًا ۭ اِنِّيْ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ

او عمل کوئ تاسې د نېکيو، بېشکه زه چې يم پر هغو کارونو چې کوئ يې تاسې ښه ليدونکی يم.

تفسير: يعنې د دغو چارو او صنايعو په مشغوليت کې د حقيقي منعم له ياده مه غافلېږئ ! او تل ترتله په صالحه وو اعمالو کې مشغول اوسئ ! او دغه خبره په ياد ولرئ چې الله تعالی ګرد اعمال او احوالويني.

وَلِسُلَيْمٰنَ الرِّيْحَ غُدُوُّهَا شَهْرٌ وَّرَوَاحُهَا شَهْرٌ ۚ وَاَسَلْنَا لَهٗ عَيْنَ الْقِطْرِ ؕ

او (مسخر کړی مو وو) سُليمان ته باد (د) سبايي (منزل) د هغه (د) يوې مياشتې، او (د) بيګايي (منزل) د هغه د يوې مياشتې (لاره) وه، او بهولې مو وه د ده لپاره چينه د ويلې کړی شويو مسو.

تفسير: د سُليمان عليه السلام داسې يو تخت وو، چې په فضا کې الوته، او دی به يې له شام څخه يمن ته او له يمن څخه شام ته رساوه، الله تعالی د سُليمان عليه السلام لپاره باد تابع او مسخّر کړی وو، نو ځکه د باد په وسيله به يې د يوې مياشتې مسافه په نيمه ورځ کې طی کوله، د «أنبياء» او د «نمل» په سورتونو کې د دې څه بيان تېر شوی دی، او وروسته له دې نه د «ص» په سورت کې يې بيان راځي.

وَمِنَ الْجِنِّ مَنْ يَّعْمَلُ بَيْنَ يَدَيْهِ بِاِذْنِ رَبِّهٖ ؕ وَمَنْ يَّزِغْ مِنْهُمْ عَنْ اَمْرِنَا نُذِقْهُ مِنْ عَذَابِ السَّعِيْرِ ﴿۱۲﴾

او (مسخّر کړي مو وو ده ته) له پيريانو هغه څوک چې کار به يې کاوه په مخ د ده کې، په اذن (حکم) د رب د ده، او هر چا چې به څنګ سرکښي وکړه له دوی له امره حکمه ځمونږ (او د سليمان اطاعت به يې نه کاوه)؛ نو وبه څکوو مونږ هغه ته (په آخرت کې) له عذاب د اور.

يَعْمَلُوْنَ لَهٗ مَا يَشَآءُ مِنْ مَّحَارِيْبَ وَتَمَاثِيْلَ وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رّٰسِيٰتٍ ؕ

جوړوه (دغو پيريانو) دغه (سُليمان) ته هر هغه شی چې ده غوښت له هسکو (اوچتو) کلاوو، او تمثالونه، او لوی لګنونه په شان د تالاو او (په شان د لويو کلکو) ديګونو پر نغريو پراته.

تفسير: يعنې لوی لوی مساجد، کلاوې، محلات به يې پر پيريانو تعمير او ودانول، او مجسمې او تصاوير به يې پر دوی جوړول، چې ممکن په هغه شريعت کې به دغه تصاوير نه وو ممنوع، او يا هم د غير ذي روح شيانو تصويرونه به يې جوړول، په محمدي شريعت کې مجسمې او تصاوير ممنوع درول شوي دي، او د مسو (ټټو) لوی لوی داسې لګنونه به يې جوړول چې لکه لوی تالاو او حوض به وو، او داسې لوی لوی ديګونه به يې هم جوړول چې له خپل ځای څخه له سره نه خوځېدل، او په هغه خپل ځای کې ځای په ځای باندې کېدل.

اِعْمَلُوْٓا اٰلَ دَاوٗدَ شُكْرًا ؕ وَقَلِيْلٌ مِّنْ عِبَادِيَ الشَّكُوْرُ ﴿۱۳﴾

(وفرمايل مونږ) عمل کوئ (د نېکيو ای) آل د داوده ! لپاره د شکر، او لږ دي له بندګانو ځما شکر ايستونکي (احسان منونکي).

تفسير: يعنې ای د داود کورنۍ ! د دغو عظيم الشأنو انعاماتو او احساناتو شکر اداء کوئ، محض په ژبه سره نه بلکه په عمل سره هم داسې کار وکړئ چې له هغو د الله تعالی شُکر ايستل مترشح وي، دغه خطاب د داود عليه السلام کورنۍ او ټبر ته دی، ځکه علاوه پر نورو مستقلو احساناتو پر داود عليه السلام باندې احسان من وجه پر ګردو احسان دی، وايي چې داود عليه السلام د خپل ګردې کورنۍ لپاره داسې د اوقاتو تقسيم جوړ کړی وو، چې د هغه په اساس د شپو ورځو په څلورويشتو ساعتو کې هيڅ يو وخت داسې نه وو چې د ده له کورنۍ څخې به يو نه يو تن د الله تعالی په عبادت کې مشغول او لګيا نه وو.

فَلَمَّا قَضَيْنَا عَلَيْهِ الْمَوْتَ مَا دَلَّهُمْ عَلَىٰ مَوْتِهِ إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُ ۖ فَلَمَّا خَرَّ تَبَيَّنَتِ الْجِنُّ أَن لَّوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ الْغَيْبَ مَا لَبِثُوا فِي الْعَذَابِ الْمُهِينِ ﴿۱۴﴾

پس کله چې حکم وکړ مونږ پر سُلیمان د موت (او دی مړ ولاړ وو، تکیه پر همسا یو کال) نو هیچا خبر کړي نه وو دغه پیریان په مرګ د دغه (سُلیمان) مګر چنجي د ځمکي (وینو) چې ویې خوړه همسا د ده، پس کله چې ولوېد (سُلیمان پر ځمکه)؛ نو معلوم شو حقیقت دپیریانو که چېرې وی (دغه پیریان) چې پوهېدی په (علم د) غیب؛ نو نه به تېراوه (سلامت یو کال) په تکلیف مشقت سپکوونکي کې.

تفسیر: کله چې سُلیمان علیه السلام پر پیریانو د بیت المقدس په تجدید کې مشغول او لګیا وو، مطلع شو چې ځما د موت نېټه را نژدې شوې ده، نو پر پیریانو یې د خپل ځان لپاره یوه د بلورو داسې مانۍ جوړه کړه چې د هغې منځنۍ سطحه له ورا ښکارېده، بیا سلیمان علیه السلام په هغې کې ننووت، او دروازې یې پر ځان پسې وتړلې، او لکه چې د دوی عادت وو چې تر څو میاشتو پورې به په خلوت کې د الله تعالی په عبادت کې مشغول وو، بیا په داسې یو وضعیت د رب العزّت په عبادت کې مشغول شو، چې د قومې په حالت پر خپله همسا باندې یې تکیه لګولې وه، کله چې پرښتې د دوی روح هم قبض کړ، د دوی مبارک نعش په هم دغه وضعیت ولاړ پاتې وو، او هیڅوک د دوی پر وفات متحسس نه شول، د دوی د وفات څخه وروسته تر ډېر مدّت پورې پیریان په هم هغه شان پخپلو تعمیریه امورو مشغول وو، کله چې تعمیرات سم له سلیماني نقشې سره پای ته ورسېدل، نو د هغې همسا په ېخ کې چې دی د هغه پر موازنه ولاړ وو؛ د لرګي چنجی (وینه) ولګېد، او هغه یې وخوړه، او دوی ولید، نو دلته جنیاتو ته د دوی د غیبي امورو د پوهېدلو حقیقت ورښکاره شو، پر پیریانو باندې معتقدو انسانانو ته هم دغه خبره څرګنده شوه، که دغه پیریان پر غیبیه وو امورو پوهېدی؛ نو څرنګه به په دغه تکلیف کې پاتې کېدل، او لازم وو چې د سُلیمان علیه السلام پر وفات له مطلع کېدلو سره متصله به یې له کاره لاس اخیست، له دې نه دا هم ظاهره شوه چې د شیاطینو او د نورو تسخیر د سُلیمان علیه السلام کسبي کمال نه وو، بلکه محض د الله تعالی فضل وو، کوم انعامات چې پر سُلیمان علیه السلام د ده په ژوندون کې کړی شوي وو؛ دغه د هغه تکمیل شو، چې وروسته د دوی له موت څخه هم تر یوه ضروري حد پورې جاري کېښود شي، او دغه راښوولې شوي دي چې د انبیاوو د شروع کړیو کارو تکمیل الله تعالی په څه تدبیر سره پوره کوي !.

لَقَدْ كَانَ لِسَبَإٍ فِي مَسْكَنِهِمْ آيَةٌ ۖ جَنَّتَانِ عَن يَمِينٍ وَشِمَالٍ ۖ

خامخا په تحقیق وو خلقو د سبا ته په ځای د هستوګنې د دوی کې یوه لویه نښه چې (هغه لویه نښه) دوه باغونه دي له ښي او کیڼ (طرف د مېنو د دوی).

تفسیر: یعنې د باغونو دوه طویلې سلسلې په ښي او کیڼ لوري اوږدې تر څو میلو پورې پرتې وې، که دوی پوهېدلی؛ نو د الله تعالی د رحمت او د قُدرت همدغه نښه د ایمان راوړلو او شکر ګزار کېدلو لپاره کافي وه.

كُلُوا مِن رِّزْقِ رَبِّكُمْ وَاشْكُرُوا لَهُ ۚ بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ ﴿۱۵﴾

(وویلی شو دوی ته) خورئ تاسې له رزق روزۍ د رب خپل او شکر وباسئ دغه (الله) ته، (دا) بلده ښار دی ډېر پاکیزه او (دغه رب د تاسې) رب دی ډېر ښښونکی.

تفسیر: د «سبأ» قوم د یمن بادشاهان او اوسېدونکي وو، الله تعالی پرې لویه مهرباني کړې وه، آرامه ژندګي یې تېروله، د ښو باغونو او کښتو خاوندان وو، الله تعالی ورته رسولان رالېږل چې په دې یې ورته حکم کاوه چې د الله تعالی رزق خورئ، او د الله تعالی د نعمتونو شکر وباسئ !، په عبادت کې یې یو وګڼئ !.

دوی تر څه وخته پورې داسې وو چې بيا يې اعراض شروع کړ، د الله تعالی د احکامو څخه يې سرغړونه وکړه، الله تعالی پرې عذاب نازل کړ، سخت سيلاب پرې راغی، او په ښارونو کې تيت او پره شول، دوی ته به د دوو غرونو په منځ کې اوبه راټلې، د بارانونو او سيلابونو اوبه هم ورسره يوځای کېدې چې بيا يې د دغه دوو غرونو په منځ کې يو محکم بند هم جوړ کړ، اوبه په کې د غرونو څنډو ته رسېدې، چې د هغې اوبو نه دوی استفاده کوله، راز راز باغونه يې جوړ کړل چې ډېری ښائسته ميوی او حاصلات يې کول.

﴿بَلۡدَةٞ طَيِّبَةٞ وَرَبٌّ غَفُورٞ﴾ له رب غفور څخه دغه طرف ته اشاره ده چې ته له خپله جانبه شکر ګزار اوسه ! که د بشريت په مقتضی څه نقص او تقصير پاتې شي؛ نو الله تعالی پر وړوکو وړوکو خبرو دومره سخت نيول نه کوي، او په خپلې مهربانی سره يې معافوي، د ده د نعماوو شکر «کما کان حقّه» د چا له لاسه پوره کېدی شي؟.

فَأَعۡرَضُواْ فَأَرۡسَلۡنَا عَلَيۡهِمۡ سَيۡلَ ٱلۡعَرِمِ وَبَدَّلۡنَٰهُم بِجَنَّتَيۡهِمۡ جَنَّتَيۡنِ ذَوَاتَيۡ أُكُلٍ خَمۡطٖ وَأَثۡلٖ وَشَيۡءٖ مِّن سِدۡرٖ قَلِيلٖ ١٦

پس وګرځېدل (له شکره او له دعوته د انبياوو اهل د سبأ)؛ پس ومولېږه پر دوی سيلاو د يوه زورور خوړ، او بدل ورکړ مونږ دوی ته په ځای د دوو باغونو د دوی کې دوه باغونه نور خاوندان د مېوو بې مزې ترخو، او د ښوره ګزه (غزانو) او يو قدر له بېرو هم خو ډېر لږ.

تفسير: يعنې پندونه اونصائح يې په خپلو غوږونو کې ونه نيول، او د حقيقي منعم له شکر ايستلو څخه يې مخ واړاوه؛ نو بيا مونږ دوی باندې د اوبو عذاب ولېږه، او هغه بند ونړېده، او هغه ګرد باغونه، ځمکې تر ځړو اوبو او خټو لاندې ډوب شول، او د هغو ښايستوو او خوندورو، اعلی، نفيسو مېوو او ثمراتو په ځای ډېر خراب او ښکته ونې او اغزي او د سوځولو وړ ځنګلونه زرغون شول، دغه ځای ته باغ ويل تش لپاره د مشاکلت دي، او د دغه لږو بېرو او نورو بېکاره ونو د پاتې کېدلو څخه مطلوب تذکر او يادونه ده، څو د هغو پخوانيو په زړه پورې شيونو او ودانيو او واقعات له افکارو څخه هېر نشي.

دغه واقعه د عيسی المسيح عليه السلام او محمد صلی الله عليه وسلم په منځ زمانه کې واقع شوې ده، د قديمه آثارو محققينو په لاس کې د «أبرهه الأشرم» د زمانې يوه لويه کتيبه د سدّ العرم د بقيه دېوال څخه لوېدلې ده چې په هغه د دغه بند د نړېدو پېښه مذکوره ده، مګر دغه غالبًا د دغې واقعې څخه د وروستنی زمانې قصه ده، چې د هغې ذکر په قرآن کې مذکور دی، والله أعلم.

ذَٰلِكَ جَزَيۡنَٰهُم بِمَا كَفَرُواْۖ وَهَلۡ نُجَٰزِيٓ إِلَّا ٱلۡكَفُورَ ١٧

دغه (عذاب) جزاء ورکړه مونږ دوی ته په سبب د هغه چې کافران شوي وو، او آيا جزاء ورکوو (يعنې نه ورکوو) مګر ناشکرو ته.

تفسير: دغه لويه سزا لويو ناشکرانو ته ورکوله کيږي، له کفر څخه بله ناشکري څه ده؟ د «النمل» په سورت کې تېر شو: ﴿وَجَدتُّهَا وَقَوۡمَهَا يَسۡجُدُونَ لِلشَّمۡسِ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ (۱۹ جزء (۲) رکوع (۲۴) آيت) ظاهراً دغسې شرک به په دغه قوم کې وروسته له بلقيس څخه پاتې وي.

وَجَعَلۡنَا بَيۡنَهُمۡ وَبَيۡنَ ٱلۡقُرَى ٱلَّتِي بَٰرَكۡنَا فِيهَا قُرٗى ظَٰهِرَةٗ وَقَدَّرۡنَا فِيهَا ٱلسَّيۡرَۖ سِيرُواْ فِيهَا لَيَالِيَ وَأَيَّامًا ءَامِنِينَ ١٨

او ګرځولي وو مونږ په منځ د دې (اهل د سبأ) او په منځ د کليو ښارونو هغو کې چې بر کت اچولی وو مونږ په هغه کې کلي (ښارونه) ښکاره، او په اندازه کړي وو مونږ په هغو کې منازل (د تګ او راتګ) (ومو فرمايل چې) ځئ راځئ په دغو کليو (ښارو) کې د شپې او د ورځې په امان (له هر آفته).

تفسير: بر کت والا کلي د شام مملکت دی، يعنې د دوی د ملك څنې د شام تر ملك پورې ټوله لاره مأمونه او مصونه او ودانه وه، د لارې پر دواړو خواوو د ودانيو او کليو سلسله په داسې اندازه او تناسب سره موجوده وه، چې متردد ينو او مسافرانو ته په هر منزل کې ځای په ځای مأکولات او مشروبات ور رسېدل، او د آرامۍ او هوسايۍ ځايونه ور ميسر کېدل، د ودانيو د دغه مقاربت او پرله پسې د يوه څخه وروسته د بل د ژر ليدلو څخه به يې فهم غلطېده او ترې توحّش، هيبت او انديښنه به ورته نه پيدا کېده، او نه د غلو او داړه مارانو څخه ډار ورته لوېده، ګواکې پر دغو لارو باندې تلل سفر نه، بلکه يو راز تفريحي سير او سياحت وو.

فَقَالُوْا رَبَّنَا بٰعِدْ بَيْنَ اَسْفَارِنَا

پس وويل دوی: ای ربه څمونږ ! لرېوالی پيدا کړه په منځ د منازلو (د سفرو) څمونږ کې.

تفسير: دغسې به يې د حال په ژبه سره ويلي وي، او ممکن دي چې د قال په ژبه سره يې ويلي وي، چې ای الله ! په داسې صورت سره په منزل او مسافرت کې څخه مزه او خوند نه وي، که منازل لرې وي، او د لارې په شاوخوا کې ودانۍ نه وي، انسان ته د لوږې او تندې څخه تکليف وررسېده؛ نو هلته په مسافرت کې لذت او خوند سړي ته حاصلېدی شي، شاه صاحب ليکي: «په آرامۍ کې دوی مست او مغرور شول، او له ډېرې مستۍ اوس ځان ته تکليف غواړي، لکه چې د نورو ملکونو له احوالاتو څخه دوی مطلع کېدل، چې هلته په سفر کې اوبه نه پيدا کيږي، د ودانۍ او کلي اثر او پته بيخي نه ښکاري، هم هغسې ښايي چې مونږ هم پخپلو مسافرتو کې وګورو، دغه لويه ناشکري ده، لکه چې بني اسرائيل له «من» او «سلوی» څخه ماړه او د هوګې او پيازو په فکر کې ولوېدل».

وَظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَجَعَلْنٰهُمْ اَحَادِيْثَ وَمَزَّقْنٰهُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ

او ظلم وکړ دوی پر ځانونو خپلو (چې راحت يې بدل کړ په زحمت) پس وګرځول مونږ دغه (أهل السبأ) قصې افسانې، او تار په تار کړل مونږ دوی په پوره تار په تار کېدلو.

تفسير: يعنې مونږ هغوی تيت پرک کړل، د دوی اکثره خاندان او کورنۍ يو جانب او بل جانب ته کډې وکړې، او منتشر شول، او يو ملك او بل ملك ته لاړل، د دوی د ودانيو نوم او نښه د غلط حرف په شان بيخي د ځمکې له مخ څخه محو او لرې شوه، اوس تش د دوی قصې پاتې دي، څو يې خلق واوري او ترې پند او عبرت واخلي، د دوی عظيم الشأن تمدّن او شان او شوکت ګرد له خاورو سره ګډوډ شول.

اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّكُلِّ صَبَّارٍ شَكُوْرٍ ﴿١٩﴾

بېشکه په دغه (تمزيق د سبا) کې خامخا لوی دلائل (د عبرت) دي لپاره د هر ښه صبر کوونکي ډېر شکر کوونکي.

تفسير: يعنې د دغو حالاتو له اورېدلو څخه ښايي عقلمن سړی پند او عبرت حاصل کړي !، کله چې الله تعالی ارتوالی عيش او عشرت ور په برخه کړ؛ نو د هغه شکريه دې په ښه شان سره اداء کړي، او که څه تکليف او مصيبت پرې راشي؛ نو د صبر او تحمّل لاره دې غوره کړي !، او له الله تعالی څخه دې توفيق او مدد وغواړي !.

وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ إِبْلِيسُ ظَنَّهُ فَاتَّبَعُوهُ إِلَّا فَرِيقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٠﴾

او خامخا په تحقيق رښتيا وموند پر دوی ابليس ګمان خپل، پس متابعت وکړ دوی ټولو د دغه (ابليس) مګر يوې فرقې (چې هغه فرقه ده) د مؤمنانو.

وَمَا كَانَ لَهُ عَلَيْهِم مِّن سُلْطَانٍ إِلَّا لِنَعْلَمَ مَن يُؤْمِنُ بِالْآخِرَةِ مِمَّنْ هُوَ مِنْهَا فِي شَكٍّ ۗ وَرَبُّكَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿٢١﴾

او نه وو دغه (ابليس) ته په دوی څه تسلّط مګر خاص لپاره د دې چې معلوم کړو (په علم الشهود سره هم) هغه څوک چې ايمان راوړي په آخرت له هغه چا څخه چې هغه له دې آخرت څخه په شک کې وي، او رب ستا پر هر څيز باندې ښه ساتونکی دی.

تفسير: يعني شيطان ته دغسې کوم قوّت او قدرت نه وو حاصل چې لکړه په لاس واخلي، او په زور او جبر سره خلق له سمې لارې څخه منع کړي او ويې ښويوي، هو ! لمسول، غولول او تېرايستل کوي، او دغومره قدرت څکه شيطان ته ورکړی شوی دی، چې د بندګانو امتحان او ابتلاء هم منظوره وه، څو وکتل شي چې کوم يو پر آخرت يقين لري؟ او د الله تعالى په فکر، ذکر او ياد کې دوام کوي؟ او کوم يو په دنيوي لومه کې نښلي؟ او له خپله انجامه او خاتمې څخه غافله کېږي؟ او له خپله ځانه ناپوهه او بېوقوفه جوړوي؟ يا په چل او فرېب غولېږي، د الله تعالى د حکمت اقتضاء همدغه وه چې په دنيا کې د انسانانو لپاره د دواړو خواوو د تللو لارې خلاصې او ارتې وپرانستلې شي.

قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ ۖ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِن شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُم مِّن ظَهِيرٍ ﴿٢٢﴾ وَلَا تَنفَعُ الشَّفَاعَةُ عِندَهُ إِلَّا لِمَنْ أَذِنَ لَهُ ۚ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې وبولئ تاسې هغه معبودان چې ګمان به کاوه تاسې (په دوی د حقيقي معبودانو) غير له الله، چې نه لري دوی اختيار په اندازه د يوې ذرې (نه) په اسمانونو کې، او نه په ځمکه کې، او نشته (دغو معبودانو) د دوی ته په دغو (علويّاتو او سفليّاتو) کې څه شرکت، او نشته دغه (الله) ته له دوی نه هيڅ مددګاره. او نه رسوي هيڅ نفع شفاعت سپارښت په نزد د الله کې مګر (شفاعت) د هغه چا چې اذن ورکړي (الله) هغه ته.

تفسير: يعني ماسوا الله څخه پر هغو شيانو چې تاسې د معبود ګمان کوئ؛ نو لږ شانې د کوم ضرورت، احتياج او اړتيا په وخت دوی وبولئ ! تر څو وليدل شي چې هغوی تاسې ته څه نفع رسولی شي؟ او څه په کار مو درځي؟ يعني دغه مسکينان د تاسې څه په کار درځي چې په اسمان او ځمکه کې د يوې ذرې په اندازه هم د مستقل واک او اختيار خاوندان نه دي، بلکه بُتان خو غير مستقل اختيار هم نه لري، نه په اسمان او نه په ځمکه کې دوی څه شرکت لري، نه الله تعالى د کوم کار په انجام کې د بل چا امداد او معاونت ته څه ضرورت لري، چې دوی د هغه معين او مددګار وګرځي، او څه حقوق ځان ته حاصل کړي، د الله تعالى دربار هغه اعلى او ارفع ځای دی، چې خورا ډېر مقربين هم هلته د دغې خبرې طاقت او توان نه لري، چې بې د الله تعالى له اذنه او رضا د چا د شفاعت او سپارښت په نسبت يو حرف هم له خپلې خولې څخه وويستلی شي، د الله تعالى د انبياوو، اولياوو او د پرښتو شفاعت هم يوازې د هغو کسانو په حق کې نافع واقع کېدی شي؛ چې د هغو په نسبت د الله تعالى له خوا د شفاعت اذن او حکم ورکړی شوی وي، او وېره د ملائکو او د شافع او د مشفوع او د اهل المحشر به باقي وي.

حَتّٰٓى اِذَا فُزِّعَ عَنْ قُلُوْبِهِمْ قَالُوْا مَاذَا ۙ قَالَ رَبُّكُمْ ؕ قَالُوا الْحَقَّ ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْكَبِيْرُ ﴿۲۳﴾

تر هغه پورې کله چې پورته کړه شي ويره له زړونو د دوی؛ وايي دوی (په خپلو منځونو کې) چې څه (حکم) وفرمايل رب ستاسې؟ نو وايي دوی چې: حق يې (وفرمايل) او همدغه (الله) ډېر پورته او ډېر لوی دی.

تفسير: دغه يې د پرښتو حال وفرمايه چې تل د ده په دربار کې حاضرې دي، کله چې له پاسه د الله تعالی حکم نازلېږي؛ نو داسې غږ پورته کېږي لکه چې پر صافو او ښويو تيږو کوم لوی ځنځير په شدّت سره راوښکودل شي، پرښتې له دهشته او خوفه او رُعبه لړزېږي او په دغه حال کې چې تسبيح کوونکې وي؛ سر په سجده لوېږي، کله چې دغه حالت مرفوع شي، او زړونه يې تسکين او آرام ومومي، او د الملک العلاّم کلام نازل شي؛ نو پرښتې يو له بل څخه پوښتنه کوي چې څه حکم صادر شو؟ پاسنۍ پرښتې ښکتنيو پرښتو ته درجه په درجه د هغه حکم نقل اوروي چې د الله تعالی له حکمته سره سم او موافق او لا له پخوا د هغه قاعده او ضابطه ورته معلومه وي، او هم هغسې حکم صادر شوی وي.

ظاهر دی چې هلته د معقولې او واجبې خبرې څخه ماسوا بل څه شی نشي کېدی، پس هغه لوی ذات چې د ده د علوّ او عظمت داسې کيفيت وي څه وخت چې حکم صادروي؛ نو مقربين د ده د هيبت او جلال په داسې وضعيت او حال مبتلا کېږي، نو هلته به څوک دومره همّت وکړی شي چې په خپل سر د بل چا شفاعت ته ودرېږي.

قُلْ مَنْ يَّرْزُقُكُمْ مِّنَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) چې څوک رزق درکوي تاسې ته له (جانبه د) اسمانونو او ځمکې؟ ووايه (ای محمده ! د دوی په ځای ته پخپله) چې (خاص رزق راکوي ټولو ته) الله.

تفسير: يعنې له اسمانه او له ځمکې څخه رزق او روزي د وسائلو او د سامانونو تهيه او برابرول يواځې د هم هغه لوی الله په واک کې دي، چې پر هغه مشرکين هم اقرار کوي، لهذا تاسې وفرمايئ چې: دغه مسلّمه خبره خو تاسې هم راسره منئ؛ نو بيا په الوهيت کې نور شرکاء له کومه شول؟ او بيا داسې هم ورته ووايه: ای محمده ! چې:

وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۴﴾

او بېشکه مونږ (چې مؤمنان يو) او تاسې (چې منکران يئ) خامخا پر سمې صافې لارې کې يو؟ يا په ګمراهۍ ښکاره کې يو؟ (وروسته به معلومېږي).

تفسير: يعنې دغه دواړه فرقې خو رښتيا نه وايي (که نه د نقيضينو اجتماع لازمېږي)، يقيناً په دواړو کې يو دروغجن او بل رښتين دی، نو لازم دي چې غور او دقّت وکړئ !، او رښتيا خبره ومنئ !، په دغه کې د هغه ځواب دا دی چې ځينې خلق داسې وايي: «خانه ! د دغو دواړو فرقو په منځ کې له قديمه راهيسې همدغه وضعيت دوام لري، نو په دغه کې د جګړو کولو څه ضرورت دی؟»، او په دغه سره يې دا راوښودل چې يوه فرقه خو هرومرو خطاکاره او بې لارې ده، باقي په تعيين نه کولو د هغه کې يو حکيمانه حسن الخطاب دی، يعنې درواخلئ ! مونږ له خپله جانبه هيڅ نه وايو، تاسو خو په خپله پوهېږئ چې يو جانب هرومرو په غلط ټينګ ولاړ دی، دغه پاس دلائل خو مو واورېدل؛ نو اوس تاسې به له خپله ځانه سره فيصله وکړئ چې کومه يوه پر غلطۍ ولاړه ده؟ ګواکې له مخالف سره په نرمۍ خبرې کوئ، او ورته فرصت او موقع ورکوئ چې په دغه مورد کې په خپل نفس او ځان کې غور او دقّت وکړي.

قُلْ لَّا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّآ اَجْرَمْنَا وَلَا نُسْـَٔلُ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۲۵﴾ قُلْ يَجْمَعُ بَيْنَنَا رَبُّنَا ثُمَّ يَفْتَحُ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ ؕ وَهُوَ الْفَتَّاحُ الْعَلِيْمُ ﴿۲۶﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) وبه نه پوښتېدلی شئ تاسي له هغو بديو چې کړي وي مونږ، او (همداسي) نه به پوښتېدلی کېږو مونږ له هغو بديو چې کوئ يې تاسي. ووايه (اى محمده !) چې جمع به وکړي په منځ ځمونږ کې رب ځمونږ، بيا حکم (فيصله) به وکړي په منځ ځمونږ کې په حق سره، او همدی دی ښه فيصله کوونکی ښه عالم.

تفسير: هر يوه ته لازم دي چې د خپل آخرت فکر او اندېښنه وکړي !، هيڅ يو به د بل د قصور او د غلطۍ ځواب نه ورکوي، که د داسې صافې خبرې له اورېدلو څخه وروسته بيا هم تاسې پر خپل حال د غور او دقّت کولو لپاره نه تيارېږئ؛ نو په ياد ولرئ چې مونږ پر تاسې د حجّت اتمام کړی دی، او د حق خبره مو دررسولې ده، اوس تاسې به په خپله د خپلو اعمالو ځواب ورکوئ، او پر مونږ هيڅ قسم ذمه واري نه ده عائده، او نه په دغسې يو حالت کې به ځما او ستاسې په منځ کې کومه وسيله او واسطه پاتې وي، د الله تعالی د لقاء او رضاء د حصول لپاره هر يوه ته بېل بېل لازم دي چې د خپلو ځانونو فکر او اندېښنه وکړي، ځکه چې الله تعالی به ګرد مخلوقات سره يو ځای او هر يوه ته به بېله بېله برابره سزا او جزاء سم له عدله او انصافه سره ورکوله کېږي.

قُلْ اَرُوْنِيَ الَّذِيْنَ اَلْحَقْتُمْ بِهٖ شُرَكَآءَ

ووايه (اى محمده ! دوى ته) چې راوښيئ ماته هغه (معبودان) چې پيوست کړي دي تاسې له دغه (الله) سره شريکان؟ (په عبادت کې).

تفسير: يعني لږ خو يې راوړاندې کړئ ! چې دغه کوم يو موجود دی چې د الله تعالی په الوهيت کې مداخله او مشارکت لري؟ چې مونږ يې هم وګورو چې په هغو کې څه صلاحيت شته؟ او د کومو اختياراتو خاوندان دي؟ آيا تاسو به مونږ ته د تيږو دغه له خپله ځانه توږلې او تراشلې بُتان راوړاندې کوئ؟.

كَلَّا ؕ بَلْ هُوَ اللّٰهُ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۲۷﴾

نه ده داسې (او هيڅوک لايق د شرکت نه دي له الله سره)، بلکه همدغه الله دی ښه غالب قوي (په انفاذ د احکامو) ښه حکمت والا (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

تفسير: يعني له سره به تاسې داسې کوم موجود او هستي نشئ راوړاندې کولی، په دغو اوصافو سره موصوف ذات خو يواځې الله تعالی دی، چې واحد، زبردست، قادر، قاهر، غالب او د اعلی درجې حکمت، قدرت، علم او حکم خاوند دی، او ګرد د هغه په مقابل کې مغلوب او مقهور دي.

وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا كَآفَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۸﴾

او نه يې لېږلی مونږ ته مګر په دې حال کې چې جامع يې خلقو ته زېری ورکوونکی (د جنت مؤمنانو ته) او ويروونکی (له دوزخ کفّارو ته) وليکن اکثر خلق (له کفّارو) نه پوهيږي (په فضائلو ستا او په رذائلو خپلو).

تفسير: دغه يې د توحيد سره د رسالت ذکر وکړ، يعني ستاسې له بعثت څخه غرض دا دی چې نه يواځې عرب بلکه د دنيا ګرد خلق تاسې له نېکيو او بديو څخه مطلع کړئ چې دغه تبليغ مو تاسې ته وکړ، هغه کسان چې خپل ځانونه يې

پرې نه دي پوهولې؛ دوی پوهيږي، او پوه سړی خو خپله نفع او نقصان سنجوي، او هرومرو ستاسې خبرې مني، هو ! مګر په دنيا کې د جاهلانو او ناپوهانو کثرت دی، د دوی په ماغزو کې چېرې د دې خبرې ځای او ګنجايش شته چې د داسې کاري خبرې قدر وکړي.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٢٩﴾

او وايي (کفار له ډېره جهله) کله به وي دغه وعده (د عذاب) که چېرې يئ تاسې رښتيني.

تفسير: يعنې له هغې ګړۍ او ساعت څخه چې تاسې مو درګرده وېروئ؛ هغه به کله راځي؟ که دغه خبره رښتيا وي نو ژر يې راوله ! راښکاره يې کړه !.

قُل لَّكُم مِّيعَادُ يَوْمٍ لَّا تَسْتَأْخِرُونَ عَنْهُ سَاعَةً وَلَا تَسْتَقْدِمُونَ ﴿٣٠﴾

ووايه (ای محمده دوی ته) چې (مقرره) ده تاسې ته وعده د يوې ورځې چې نه به وروستی کېږئ له هغې (ورځې) يو ساعت (قدر) او نه ړومبی کېږئ تاسې (ترې).

تفسير: يعنې مه وار خطا کېږئ ! د هغې ورځې د راتګ وعده چې له تاسې سره شوې ده؛ هغه ضرور راتلونکې ده، او کله چې وخت راشي؛ نو د يوې شېبې په اندازه به هم چا ته وار فرصت نه ورکوي، نو د دغه ژر غوښتلو او شور او شر نښلولو په ځای د دغې خبرې فکر تاسې ته ضرور دی، چې د هغه وخت د راتللو څخه پخوا ورته څه تياری وکړئ !.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَن نُّؤْمِنَ بِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ ۗ

او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي: له سره به ايمان رانه وړو مونږ په دې قرآن (چې محمد ته راغلی دی) او نه پر هغه کتابونو چې راغلي دي پخوا له دې (قرآنه).

تفسير: يعنې منکران وايي: مونږ نه قرآن منو او نه نور هغه پخواني کتابونه لکه تورات، انجيل، زبور چې تاسو يې اسماني کتابونه ګڼئ، دغه ګرد سره هم هغه يو ډول او يو شان خبرې کوي، د دوی په هر يوه کې چې وګورئ؛ هم هغه د حساب، کتاب، قيامت، شفاعت، ثواب، عقاب، او د توحيد او رسالت قصې او افسانې دي، حال دا چې بېخي مونږ د دغسې شيانو منونکي نه يو، او نه پرې يقين او باور لرو (العياذ بالله).

وَلَوْ تَرَىٰ إِذِ الظَّالِمُونَ مَوْقُوفُونَ عِندَ رَبِّهِمْ يَرْجِعُ بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ الْقَوْلَ

او که ووينې ته (ای محمده په آخرت کې) کله چې دغه ظالمان ودرول شي په نزد د رب د دوی (لپاره د حساب) چې اړوي به ځينې د دوی له ځينو نورو سره خبرې (داسې چې)

تفسير: يعنې هم هغسې چې د مغلوبيت او ناکامی په وختونو کې بالعموم داسې پېښې واقع کيږي، چې ناکامان د پړوالي او مغلوبی اسباب او وسائل يو پر بل اړوي، او يو سړی خپل مسؤوليت پر بل سړي اچوي، همداسې په محشر کې به کفّار يو پر بل خپل بار غورځوي، او غواړي چې مجرم او ملزم يې کړي، چې د هغه تفصيل داسې فرمايي:

يَقُولُ الَّذِينَ اسْتُضْعِفُوا لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا لَوْلَا أَنتُمْ لَكُنَّا مُؤْمِنِينَ ﴿٣١﴾

وبه وايي هغه (تابعان) چې ضعيف ګڼلی شوي وو هغو (متبوعانو) ته چې تکبّر به يې کاوه چې: که نه وی تاسې (منع کوونکي مونږ لره له ايمانه؛) نو خامخا وو به مونږ مؤمنان (نو خامخا وينې يو کار ډېر سخت، او دغه محذوف د «لو» جواب دی).

تفسير: يعنې هغه کسان چې په دنيا کې له ښکتو طبقاتو څخه شميرلي کېدل، او د نورو مشرانو متابعت به يې کاوه، دوی به پر خپلو دغو مشرانو او غټانو الزام اړوي، او وايي به چې: مونږ ستاسې له لاسه په دغه غم او مصيبت کې ککړ او اخته شوي يو، که ستاسې لمسون او ممانعت نه وی؛ مونږ به ضرور د انبياوو خبرو ته غوږ ايښود، او په دغه عذاب به نه اخته کيدو.

قَالَ الَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْٓا اَنَحْنُ صَدَدْنٰكُمْ عَنِ الْهُدٰى بَعْدَ اِذْ جَآءَكُمْ بَلْ كُنْتُمْ مُّجْرِمِيْنَ ﴿٣٢﴾

وبه وايي هغه (متبوعان) چې تکبّر به يې کاوه هغو کسانو ته چې عاجزان کړی شوي وو: آيا مونږ منع کړي وئ تاسې له سمې صافې لارې پس له هغه چې راغلی وو (دغه هدايت) تاسې ته؟ (نه دي داسې) بلکه وئ تاسې په خپله مجرمان (کافران).

تفسير: يعنې کله چې تاسې ته حقه خبره ورسېده او پرې وپوهېدئ؛ نو بيا مو هغه ولې ونه منله؟ آيا مونږ په زور سره ستاسې زړونه د ايمان او ايقان له قبوله اړولي وو؟ پر تاسې دغه لازم وو چې په دغه مورد کې مو د هيچا خبرو ته غوږ نه کېښوده، او هيڅ پروا به مو نه وی کړي، او هرومرو به مو حق قبلولئ، اوس خپله ګناه او جرم نورو ولې غورځوئ؟.

وَقَالَ الَّذِيْنَ اسْتُضْعِفُوْا لِلَّذِيْنَ اسْتَكْبَرُوْا بَلْ مَكْرُ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ اِذْ تَاْمُرُوْنَنَآ اَنْ نَّكْفُرَ بِاللّٰهِ وَنَجْعَلَ لَهٗٓ اَنْدَادًا ؕ

او وبه وايي هغه کسان چې عاجزان ګڼلی شوي وو هغو (رئيسانو) ته چې تکبر به يې کاوه: بلکه دا فريب (ستاسې وو) د شپې او د ورځې کله چې امر به کاوه تاسې مونږ ته (هر وخت داسې) چې کافران شو مونږ پر الله، او پيدا کړو مونږ دغه (الله) ته شريکان.

تفسير: يعنې بېشکه چې تاسې په زوره مونږه نه وو منع کړي، مګر د شپې او د ورځې په مکر او فريب او په غولوونکيو تدابيرو سره مو تېر ايستلي او لمسولي يو، او په هر وخت او په هر ځای کې به ستاسې ښوونه او تلقين مونږ ته همداسې وو، څو مونږ د انبياء الله له ارشاد سره سم الله تعالى په وحدانيت سره ونه منو، بلکه ځينې نور مخلوقات د ده شريک او مماثل وګڼو، آخر تاسې خو پوهېږئ چې ستاسې دغه د شپې او د ورځې دائمي او متوالي ترغيب او تشويق او لمسونې تر کومې اندازې پورې مونږ له لارې څخه بې لارې او پر مونږ يې ډېر بد اثرات غورځولي دي.

وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الْعَذَابَ ؕ

او پټه به کړي (دغه تابعان اومتبوعان يو له بله) پښيماني خپله کله چې ووينې عذاب.

تفسير: يعنې څه وختې چې دوی له هولناک عذاب سره مخامخ کيږي؛ تابعان او متبوعين دواړه په خپلو زړونو کې افسوسونه او ارمانونه کوي، او هر يو به دغه محسوسوي چې په رښتيا سره زه مجرم او ګناهګار يم، ليکن له شرمه به دغه کيفيت يو بل ته نه څرګندوي، او د شديد خوف او اضطراب لامله امکان لري چې دوی به هم د وينا قوّت او قدرت ونه لري.

وَجَعَلْنَا الْاَغْلٰلَ فِيْٓ اَعْنَاقِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ؕ

او وبه ګرځوو ځنځيرونه (د اور) په غاړو د هغو کسانو کې چې کافران شوي دي (تابعان دي که متبوعان).

تفسیر: د دوی په غاړو کې به د فولادو غاړکۍ او په لاسونو او پښو د دوی کې به لوی او غټ ځنځیرونه او زولنې لویدلي وي.

هَلْ يُجْزَوْنَ اِلَّا مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۳۳﴾

آیا جزا به ورکوله شي دوی ته (بلکه نه ورکوله کیږي) مګر خو د همدغو (عملونو) چې دوی کول (په دنیا کې).

تفسیر: یعنې هر هغه عمل چې مو کړی دی؛ نن هغه د همدغې سزا په شکل در ځرګندیږي، نو اوس وربېږ هغه دانې چې مو کرلي دي.

وَمَاۤ اَرْسَلْنَا فِيْ قَرْيَةٍ مِّنْ نَّذِيْرٍ اِلَّا قَالَ مُتْرَفُوْهَاۤ اِنَّا بِمَاۤ اُرْسِلْتُمْ بِهٖ كٰفِرُوْنَ ﴿۳۴﴾

او نه وو لېږلی مونږ په هیڅ کلي (او ښار) کې هیڅوك ویروونکی (له عذابه) مګر ویل به خوشاله (ماړه او مشرانو خلقو) د هغه (قریې) چې: بېشکه مونږ په هغه څه چې رالېږلي شوي يئ تاسې په هغه شي؛ کافران (منکران) یو.

تفسیر: په دغه سره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته تسلّي او اطمينان ورکړی شوی دی، چې تاسې د معظمې مکې د رؤساوو او غټانو د غاړه غړولو او سرکښۍ څخه مه مغموم او مه خفه کېږئ! په هره زمانه کې د انبیاء الله په مخ کې هم داسې بدبخت رؤساء او مشران په مخالفت سره دریدلي دي، د دولت او ثروت نشه، او د عزت او اقتدار غوښتلو جذبه د انسانانو سترګې ړندوي، او دوی پر دغه باعث کوي چې د هیڅا په مقابل دی ښايي غاړه کښېږدي، او د کشرانو په مجلس کې کېناستل ځان ته عیب وګڼي، نو ځکه د انبیاوو ړومبی متبعین به عمومًا هم دغه مسکینان او ضعیفان وو، کما ورد في حدیث هرقل.

وَقَالُوْا نَحْنُ اَكْثَرُ اَمْوَالًا وَّاَوْلَادًا ۙ وَّمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۳۵﴾

او ویل به دوی چې: مونږ ډېر یو (له تاسې) له جهته د مالونو او د اولاد، او نه یو مونږ په عذاب کړی شوي.

تفسیر: یعنې معلوم شو چې الله تعالی له مونږ څخې راضي او خوښ دی، که نه دومره مال او اولاد به یې مونږ ته ولې راکوو؟ کله چې الله له مونږ څخه خوښ وي؛ نو مونږ د هیڅ یو آفت څخه نه ویریږو، ته چټې مونږ له عذابه ډاروې.

قُلْ اِنَّ رَبِّيْ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾

ووایه (ای محمده! دوی ته) چې بېشکه رب ځما پراخوي رزق روزي لپاره د هر هغه چا چې اراده وفرمايي، او تنګوي يې (پر هر هغه چا چې اراده وفرمايي)، ولیکن اکثر خلق نه پوهیږي (چې دا استدراج دی).

تفسیر: یعنې د رزق وسعت یا ضیقت د الله تعالی د خوښۍ یا د ناخوښۍ دلیل له سره نشي کېدی، آیا نه ګورې چې په دنیا کې څومره بد اخلاقان، شریران، دهریان او ملحدان مزې او چړچې کوي، حال دا چې هغو ته هیڅ یو مذهب هم ښه نه وايي، او ډېر متقیان مخلصان او د الله تعالی نېك او خالص بندګان ظاهرًا وږي تږي بربنډ دي، نو معلوم شو چې دولت او افلاس، د رزق تزيید یا تقلیل د هیڅا د محبوبتوب او مقبولتوب عند الله دلیل نه دی، دغه معاملات خو پر نورو هغو مصالحو او حکمتونو مبني دي چې پرې یواځې پاك الله پوهیږي مګر اکثر خلق پر دغه نکته نه پوهیږي.

وَمَآ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُم بِٱلَّتِى تُقَرِّبُكُمْ عِندَنَا زُلْفَىٰٓ إِلَّا مَنْ ءَامَنَ وَعَمِلَ صَٰلِحًا

او نه دي دغه مالونه ستاسي او نه اولاد ستاسي داسي شيز (خصلت هغه خصلت) چي نژدي كوي تاسي په نزد څمونږ مګر (نژدي كوي له تاسي) هر هغه څوك چي ايمان راوړي او كړي يې وي ښه (عملونه).

تفسير: يعني د مال او د اولاد كثرت نه د الله تعالى د قرب علامت دى لكه چې په پاس آيت كې تېر شو، او نه د الله تعالى د قرب حاصلولو سبب دى، بلكه بالعكس د كفارو په حق كې د دغو شيانو تزييد او تكثير د دوى د بعد او د لريوالي سبب ګرځي، هو ! كه مؤمنان خپل مال او دولت په خيري امورو كې ولګوي، يا خپل اولاد ته ښه تعليم او تربيه وركړي، او ښه يې اهل او صالح وپالي؛ نو دغسې مال او اولاد په يوه درجه د الله تعالى د قرب وسيله ګرځي، په هر حال د الله تعالى په دربار كې د مال او د اولاد څخه پوښتنه نه كيږي، بلكه هلته محض د ايمان او د صالح عمل پوښتنه كوي.

فَأُو۟لَٰٓئِكَ لَهُمْ جَزَآءُ ٱلضِّعْفِ بِمَا عَمِلُوا۟ وَهُمْ فِى ٱلْغُرُفَٰتِ ءَامِنُونَ ﴿۳۷﴾

پس دغه (مؤمنان چې دي) شته دوى ته جزاء دوچنده په سبب د هغو (نېكيو) چې كړي دي دوى، او دوى به په ماڼيو (د جنت كې مطمئن) مأمون وي (له هر آفته).

تفسير: يعني پر يوه نېک كار د هومره اجر او ثواب استحقاق چې لري؛ له هغه څخه به زيات بدل وررسيږي، اقلا لس چنده او كه زيات وي؛ تر اوه سوه چنده بلكه كه الله تعالى اراده وفرمايي؛ له هغه څخه به هم هومره ډېر اجر او ثواب ور په برخه كوي، چې بېحده او بېحسابه وي: ﴿وَٱللَّهُ يُضَٰعِفُ لِمَن يَشَآءُ ۗ وَٱللَّهُ وَٰسِعٌ عَلِيمٌ﴾ (د البقرې سورت (۳۶) ركوع، (۲۶۱) آيت دلته له «ضعف» څخه مطلقًا زيادت مراد دى.

وَٱلَّذِينَ يَسْعَوْنَ فِىٓ ءَايَٰتِنَا مُعَٰجِزِينَ أُو۟لَٰٓئِكَ فِى ٱلْعَذَابِ مُحْضَرُونَ ﴿۳۸﴾

او هغه كسان چې سعي كوښښ كوي په (ابطال د) آيتونو څمونږ په دې حال كې چې عاجز كوونكي وي مونږ لره (په زعم خپل) دغه كسان په عذاب (د دوزخ كې) حاضر كړى شوي به وي.

تفسير: يعني هغه بدبختان چې د الله تعالى د آيتونو ترديد كوي، او پر هغو طعني وهي، او د خلقو مخ له هغوى څني اړوي، او داسې دعوى كوي چې مونږ الله تعالى او د هغه رسول مغلوب او عاجزوو، دوى ټول به په عذاب اخته كيږي، او د الله تعالى په مخ كې به حاضر كړى شي، او هيڅ يو به له دوى څني د الله تعالى له نيولو څخه نه خلاصيږي، او نه به چېرې تښتېدى شي.

قُلْ إِنَّ رَبِّى يَبْسُطُ ٱلرِّزْقَ لِمَن يَشَآءُ مِنْ عِبَادِهِۦ وَيَقْدِرُ لَهُۥ ۚ وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَىْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ ۖ وَهُوَ خَيْرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ﴿۳۹﴾

ووايه (اى محمده ! دوى ته) بېشكه رب څما پراخوي رزق روزي لپاره د هر هغه چا چې اراده وفرمايي له بندګانو خپلو، او تنګوي يې ورته (چې اراده وفرمايي امتحانًا)، او هر هغه څه چې لګوئ يې تاسې (په لاره د الله كې) له كوم شي څخه (ډېر وي كه لږ) پس هغه (الله) عوض دركوي د هغې، او همدغه (الله) خير غوره د روزي وركوونكيو دى.

تفسير: دغه يې مسلمانانو ته اورولي دي، هغه مال چې تاسې په خيريه امورو کې لګوئ؛ د هغو د لګولو په وخت له تنګسی او افلاس څخه مه ويرېږئ، له صرف کولو څنې ستاسې رزق نه کمېږي، هغه شی چې تاسې ته مقدّر او مقرر دی؛ هغه هرومرو دررسيږي، الله تعالی په خپل حکمت او مصلحت هر چاته چې د هومره شي د اعطاء اراده وفرمايي؛ ورکوي يې، په هغه کې ستاسې له صرفولو او نه صرفولو څخه هيڅ فرق او توپير نه واقع کيږي، بلکه په خيريه امورو کې د اموالو له لګولو څخه برکت په کې لويږي، الله تعالی د هغه عوض درکوي، اعم له دې چې د مال په صورت وي، يا د قناعت يا د قلبي غناء په شکل وي، په آخرت کې دهغه د بدل در رسېدل خو يو حتمي امر دی.

وَيَوۡمَ يَحۡشُرُهُمۡ جَمِيعٗا ثُمَّ يَقُولُ لِلۡمَلَـٰٓئِكَةِ أَهَـٰٓؤُلَآءِ إِيَّاكُمۡ كَانُواْ يَعۡبُدُونَ ﴿٤٠﴾

او (ياده کړه) هغه ورځ چې (الله) ټول به کړي دوی ګرد، بيا به فرمايي (الله) ملائکو ته: آيا دا هغه ګمراهان دي چې خاص تاسې ته (بې له الله) وو (په دنيا کې) چې عبادت به يې کاوه؟.

تفسير: زياتو مشرکانو به پرښتو ته د الله تعالی لوڼې ويلې، ډېرو مشرکانو به د دغو پرښتو هيکلونه پخپل اټکل سره جوړ کړي وو، او هغو ته به يې عبادت کاوه، بلکه ځينو ليکلي چې: د اصنامو عبادت ابتداء د ملائکو له عبادت څخه شروع شوی دی، او (عمرو بن لُحيّ) دغه قبيح رسم له (شام) څخه (حجاز) ته راوړی دی، په هر حال په قيامت کې د کفارو د اورولو لپاره به له پرښتو څخه داسې سوال فرمايي: آيا دغو خلقو به خاص تاسې ته عبادت کاوه؟ ښايي له دې نه به دا مطلب وي چې تاسې خو دوی ته څه نه وو ويلي؟ يا تاسې خو له دوی د دغه عبادت څخه نه يې خوشال شوي؟ لکه چې له مسيح عليه السلام څخه به هم داسې سوال کيږي: ﴿ءَأَنتَ قُلۡتَ لِلنَّاسِ ٱتَّخِذُونِي وَأُمِّيَ إِلَـٰهَيۡنِ مِن دُونِ ٱللَّهِ﴾ (۷ جزء د المائدې سورت (۱۶) رکوع (۱۱۶) آيت)، او په (۱۸ جزء د فرقان سورت په (۲) رکوع (۱۷) آيت) کې راغلي دي: ﴿ءَأَنتُمۡ أَضۡلَلۡتُمۡ عِبَادِي هَـٰٓؤُلَآءِ﴾.

قَالُواْ سُبۡحَـٰنَكَ أَنتَ وَلِيُّنَا مِن دُونِهِمۖ بَلۡ كَانُواْ يَعۡبُدُونَ ٱلۡجِنَّۖ أَكۡثَرُهُم بِهِم مُّؤۡمِنُونَ ﴿٤١﴾

وبه وايي (پرښتې جوابًا) پاکي ده تاته، ته يې مولی (معبود) څمونږ بې له دوی نه (نه ده داسې چې دغه کفّار وايي) بلکه وو دوی چې عبادت به يې کاوه د پيريانو شيطانانو، او زياتره د دوی پر دغو (پيريانو شياطينو باور کوونکي) او مؤمنان وو (نو منلې به يې خبرې د دوی).

تفسير: يعني عرض کوي: يا الله ! ستا ذات له دې نه پاک دی چې په کومه درجه څوک درسره شريک شي، العياذ بالله مونږ به ولې داسې خبرې کړو؟ يا له هسې واهياتو حرکاتو څخه به خوښيږو؟ څمونږ رضا خو ستا د رضا تابع ده، مونږ له دغو مجرمانو سره هيڅ علاقه او واسطه نه لرو، مونږ يواځې خاص ستا فرمان منونکي بندګان او مريان يو، خو سره له دې دغو بد بختانو کله څمونږ عبادت کاوه، دوی په حقيقت کې څمونږ په نامه د شياطينو په عبادت کې مشغول وو، في الحقيقت د دوی عقيدتمني او اخلاص له شياطينو سره اختصاص لري، شياطين دوی خپل طرف ته کش کاږي، او د ضلالت په لار يې بالاستمرار بولي، دوی دائمًا د شياطينو په تعقيب روان دي، اګر که ظاهرًا دوی د پرښتو يا د کوم ولي نوم اخلي، مګر په واقع کې پر ته له شيطان څخه بل څوک دوی نه مني، بلکه ځينې د دوی په علانيه سره د همدغه شيطان په بندګی کې لګيا دي، لکه چې پخوا له دې نه د «الأنعام» د سورت (۱۲) رکوع کې څمونږ د دغه تفسير دغه موضوع مو په تفصيل سره ليکلې ده.

فَٱلۡيَوۡمَ لَا يَمۡلِكُ بَعۡضُكُمۡ لِبَعۡضٖ نَّفۡعٗا وَلَا ضَرّٗا

(نو الله فرمايي) پس نن ورځ نه لري اختيار ځينې ستاسې (معبودان) لپاره د ځينو نورو (عابدانو) نه د نفعې او نه د ضرر.

**تفسير:** يعنې نن د عابدانو او د معبودانو عجز او ناتواني واضحه شوه، چې هيڅ يو د يوې ذرې په اندازه هيڅا ته څه ګټه او تاوان نشي رسولی، دوی پر هغو معبودانو چې مغرور وو، او هغوی يې د خپلو ځانونو لپاره وسيله او شافع ګرځولي وو؛ نن ورځ هغه معبودان له دوی څخه خپله بيزاري ښکاره کوي.

وَنَقُولُ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ النَّارِ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ﴿٤٢﴾ وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا رَجُلٌ يُرِيدُ أَن يَصُدَّكُمْ عَمَّا كَانَ يَعْبُدُ آبَاؤُكُمْ

او وبه وايو مونږ هغو کافرانو ته چې ظلم يې کړی دی: وڅکئ تاسې عذاب د اور هغه چې وئ تاسې چې د دې (اور) تکذيب به مو کاوه (په دنيا کې). او کله چې ولوستلی شي پر دوی آيتونه ځمونږ په دې حال کې چې واضح دي؛ نو وايي: نه دی دغه (محمد) مګر يو داسې سړی دی چې اراده لري د دې چې منع کړي تاسې له هغه شي څخه چې وو چې عبادت به کاوه پلرونو ستاسې.

**تفسير:** دغسې به دوی د رسول کريم صلی الله عليه وسلم په نسبت په خپلو منځو سره ويل چې: دغه سړی خو نه رسول او نه نبي دی، او فقط هم دغومره مقصد لري چې مونږ ځمونږ د پلرونو او نيکونو له هغه طريقې څخه جدا کړي چې له قديمه راهيسې مونږ ته پاتې دی، او مونږ يې حق ګڼو، او مونږ خپل دين او طريقې ته کش کوي، او په دغه وسيله سره خپل ځان حاکم او متبوع او مونږ محکوم او تابع وګرځوي، ګواکې دی يوازې خپل حکومت او رياست غواړي (العياذ بالله).

وَقَالُوا مَا هَٰذَا إِلَّا إِفْكٌ مُّفْتَرًى

او وايي دغه (منکران) چې نه دی دغه (قرآن) مګر يو دروغ دی له خپله ځانه جوړ کړی.

**تفسير:** يعنې دغه چېرې قرآن دی (العياذ بالله)، بلکه د څو دروغو خبرو مجموعه ده، چې د هغه نسبت الله تعالی ته کاوه شي.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٤٣﴾

او وايي هغه (منکران د مکې) چې کافران شوي دي حق (قرآن ـ اسلام ـ نبوّت) ته کله چې راغی دوی ته: نه دی دغه مګر خو دی سحر کوونکی ښکاره.

**تفسير:** يعنې دغه د نبوت دعوی چې د هغه د څو معجزو او خوارقو ښوونه هم کړی شوې ده، يا د اسلام دين چې په خپل نزول سره يې دمېږه او ښځې او ځوی او پلار په منځ کې بېلتون او تفرقه اچولې ده، يا قرآن چې د هغه له فوق العاده تأثيره د خلقو په زړونو کې فوق العاده اثرات او انفعالات پيدا کيږي، د صريح جادو او ښکاره کوډو او سحر څخه ماسوا بل شی نه دی (العياذ بالله).

وَمَا آتَيْنَاهُم مِّن كُتُبٍ يَدْرُسُونَهَا وَمَا أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمْ قَبْلَكَ مِن نَّذِيرٍ ﴿٤٤﴾

حال دا چې نه دي ورکړي مونږ دوی ته له کتابونو (منزله وو څخه) چې لولي دوی هغه (کتابونه)، او نه وو ليږلي مونږ دوی ته پخوا له تانه کوم وېروونکی (له جحيمه).

**تفسير:** يعنې محض امي وو، نه کوم سماوي کتاب د دوی په لاس کې وو، نه په دومره اوږد مدّت کې کوم نبي په دوی کې مبعوث شوی وو، الله تعالی په دوی کې داسې عظيم الشأن رسول مبعوث او داسې جليل القدر قرآن يې

ورولېږه، چې دواړه يې عديم النظير او بېمثاله دي، نو پر دوی لازم وو چې دوی به دغه نعمت غنيمت ګڼلی !، او د الله تعالی د دغه انعام او احسان به يې زيات قدر کاوه !، خصوصًا چې دوی به پخپله پخوا له دې نه داسې ويل: «که په مونږ کې کوم نبي مبعوث شوی وی، يا پر مونږ کوم اسماني کتاب نازلېدی؛ نو مونږ به هغه مانه، او په اطاعت کې به مو له نورو څخه زياته جلتي او مسارعت کاوه»، اوس چې هغه مقصود مطلوب وررسېدلی دی؛ نو دوی د هغه په مقابل کې استکبار او انکار کوي.

وَكَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ وَمَا بَلَغُوا مِعْشَارَ مَا آتَيْنَاهُمْ فَكَذَّبُوا رُسُلِي فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿٤٥﴾

او تکذيب کړی وو (د انبياوو هم داسې) هغو کسانو چې پخوا وو له دوی، حال دا چې نه دي رسيدلي (دغه کفّار د مکې) لسمې برخې د هغه شي ته چې ورکړی مو وو هغوی ته (له قوّت او قدرت)، پس تکذيب وکړ (هغو پخوانيو) د رسولانو ځما، پس څرنګه وو انکار ځما (په عذابولو د هغو).

تفسير: يعنې هم هغسې اوږده عمرونه، جسماني قوّتونه، مال، دولت، او عيش عشرت چې هغوی ته ورکړی شوی وو؛ د هغه عشر العشير هم تاسې ته نه دی درکړی شوې، نو هر کله چې هغوی له خپلو انبياوو سره مخالفت او د هغوی تکذيب ته ودرېدل؛ ښه وګورئ چې د هغوی آخره خاتمه څرنګه شوه؟ او د هغوی ګرد ساز او سامان څنګه بېکاره پاتې شو؟ او د الله تعالی منزل عذاب د يوې شېبې له مخې هم معطل نه شو، او نه يې چا مخه ونيوی شوه، نو بيا تاسې پر څه مغرور او د څه لپاره دومره لويي او ځانمني (غرور) کوئ؟.

قُلْ إِنَّمَا أَعِظُكُم بِوَاحِدَةٍ أَن تَقُومُوا لِلَّهِ مَثْنَىٰ وَفُرَادَىٰ ثُمَّ تَتَفَكَّرُوا مَا بِصَاحِبِكُم مِّن جِنَّةٍ إِنْ هُوَ إِلَّا نَذِيرٌ لَّكُم بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ ﴿٤٦﴾

ووايه (ای محمده ! منکرينو ته) بېشکه همدا خبره ده چې پند درکوم تاسې ته په يوې خبرې سره چې ودرېږئ تاسې خاص الله ته دوه دوه او يو يو، بيا ښه فکر (او غور) وکړئ چې نشته په دغه ملګري ستاسې کې هيڅ قسم لېونتوب، نه دی دغه (محمد) مګر ويرونکی دی تاسې ته په مخ کې د عذاب سخت (د قيامت).

تفسير: يعنې تعصّب او عناد پرېږدئ ! په انصاف او اخلاص سره د پاك الله په نامه سم ودرېږئ !،او څو څو تنه سره يو ځای شئ !، او پخپلو منځونو کې سره مباحثه، مرکه، مشوره او جرګه وکړئ !، او يواځې له خپلو ځانونو سره هم بېل کېنئ، او ښه فکر، دقّت او غور وکړئ !، چې ستاسې دغه رفيق محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم چې له څلوېښتو کلونو څخه ډېر ستاسې تر نظر لاندې حيات او ژوندون کوي، او تاسې د هغه د ګردو حالاتو او له ذرې ذرې خصوصياتو څخه يې د طفوليت تر کهولت پورې کامل خبردار يئ، او د ده پر امانت، ديانت، صداقت، عفاف او پوهې تل ترتله قائلان يئ، او ښه پوهېږئ چې دی هيڅکله په هيڅ يوه معامله کې په نفسانيت، اغراض او نورو بدو خبرو او اخلاقو ملزم او مشبوه نه دی ګرځېدلی، نو آيا تاسې په واقعي ډول سره اوس داسې اټکل او ګمان پرې کولی شئ چې دی (العياذ بالله) بې له کومو موجبه اسبابو يو ناڅاپه لېونی شوی دی؟ او بې سببه يې ځينې خلق له خپله ځانه سره دښمنان او مخالفان ګرځولي دي؟.

قُلْ مَا سَأَلْتُكُم مِّنْ أَجْرٍ فَهُوَ لَكُمْ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ

ووايه (ای محمده ! دوی ته) هر هغه څه چې وغوښتل ما له تاسې له اجرته (په دغه انذار)؛ پس هغه دې هم ستاسې وي، نه دی اجر ځما مګر پر الله دی.

الله تعالی فرمايي چې: اوس لږ شاني له دغو جاهلانو څخه پوښتنه وکړئ چې آيا داسې د لوی عظمت او قدرت والا الله تعالی (معاذ الله) د خپل ځان لپاره که د اولاد تجويز هم کوي؛ نو آيا د خپل ځان لپاره لوڼې غوره کوي؟ او تاسې ته هلکان درکوي !؟ يو خو دغه بې ادبي او ګستاخي شوه چې تاسې الله تعالی ته د اولاد نسبت کوئ، او بيا په اولاد کې هم ورته کمزوي او ښکته او ضعيفه اولاد، او پرښتو ته هم د اناثو (ښځو) نسبت کوئ، آيا کوم وخت چې مونږ پرښتې پيدا کولې؛ دوی ځمونږ په څنګ کې ولاړ وو؟.

اَصۡطَفَى الۡبَنَاتِ عَلَى الۡبَنِيۡنَ ﴿١٥٣﴾ مَا لَكُمۡ ۫ كَيۡفَ تَحۡكُمُوۡنَ ﴿١٥٤﴾ اَفَلَا تَذَكَّرُوۡنَ ﴿١٥٥﴾

آيا غوره کړي دي دغه (الله) لوڼې پر ځامنو. څه وشوه پر تاسې (په دغه حکم د دروغو کې) دغه څرنګه حکم کوئ تاسې. آيا پس پند نه اخلئ تاسې (چې الله پاک دی له ټولو عيوبو).

تفسير: يعنې لږ ذره خو غور او دقت وکړئ، د عيب ترلو لپاره هم لياقت او علميت پکار دی، که مو داسې يوه غلطه عقيده له خپله ځانه جوړوله؛ نو ښايي چې دغسې بې اساسه او بې منطقه به مو نه جوړوله، دغه کوم عدل او انصاف دی چې د خپل ځان لپاره هلکان غوره او پسند کړئ؟ او پاک الله ته د لوڼو نسبت وکړئ؟.

اَمۡ لَكُمۡ سُلۡطٰنٌ مُّبِيۡنٌ ﴿١٥٦﴾ فَاۡتُوۡا بِكِتٰبِكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ﴿١٥٧﴾

آيا شته تاسې ته کوم برهان سند ښکاره (چې الله اولاد لري). پس راوړئ تاسې هغه کتاب خپل که چېرې يئ تاسې صادقين رښتين (په خپل قول کې).

تفسير: يعنې بالآخر دغسې مهمله او بې اساسه خبره مو له کوم ځای څخه راايستلې ده؟ له عقل او فهم او علمي اصولو سره خو د دغې خبرې هيڅ اړه او ارتباط نشته، نو آيا کوم نقلي سند د دغې عقيدې د اثبات لپاره لرئ؟ که داسې وي؛ نو بسم الله ! راوړاندې يې کړئ !.

وَجَعَلُوۡا بَيۡنَهٗ وَبَيۡنَ الۡجِنَّةِ نَسَبًا ؕ وَلَقَدۡ عَلِمَتِ الۡجِنَّةُ اِنَّهُمۡ لَمُحۡضَرُوۡنَ ﴿١٥٨﴾ سُبۡحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يَصِفُوۡنَ ﴿١٥٩﴾

او ګرځوي دغه مشرکان په منځ د دغه (الله) او په منځ د پيريانو نسب قرابت (نسبت د خپلوۍ)، او خامخا په تحقيق پوهيږي پيريان چې بېشکه دوی خامخا حاضر کړی شوي دي (دوزخ ته). پاکي ده الله ته له هغو (خبرو) څخه چې وايي يې دوی (چې شريک او ولد ورته نيسي).

تفسير: يعنې دغو حمقاوو د پيريانو سره (معاذ الله) د الله تعالی د ځوموالي (دامادۍ) تعلّقات قائم کړي دي، سبحان الله !، دوی څرنګه خبرې کوي؟ که موقع ومومئ؛ نو لږ شاني له دغو پيريانو څخه پوښتنه وکړئ چې د هغوی عقيده او افکار د خپلو ځانونو په نسبت څرنګه دي؟ او خپل ځانونه څرنګه ګڼي؟ دوی ته دغه خبره په ښه شان سره معلومه ده چې دوی هم لکه نورو مجرمينو نيولی کيږي، او د الله تعالی په مخ کې وړاندې کولی شي، ايا له ځوم او داماد سره همداسې معامله کوله شي؟ ځينې اسلافو له نسب څخه مقصد اخيستی دی چې دغو خلقو شياطين الجن د الله تعالی مقابل حريفان ګڼل، لکه چې مجوسيان د «يزدان» او «اهربمن» قائلان دي، يعنې يوه ته د نېکۍ خدای او بل ته د بدۍ خدای وايي.

اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الۡمُخۡلَصِيۡنَ ﴿١٦٠﴾

مګر هغه بندګان د الله چې پاک کړی شوي دي (منزّه دي له دغه نسبت او احضار د دوزخ).

تفسير: يعنې له پيريانو يا انسانانو ځنې د الله تعالى غوره او منتخب بندګان له نيولو او په عذابولو څخه آزاد دي، معلوم شو چې هلته د نسبونو او د ارتباطاتو او د تعلقاتو څه پوښتنه نشته، بلکه هلته يواځې د بندګی او اخلاص پوښتنه کيږی.

فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ﴿١٦١﴾ مَآ أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَٰتِنِينَ ﴿١٦٢﴾ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ ٱلْجَحِيمِ ﴿١٦٣﴾

پس بېشکه تاسو چې يئ او هغه چې عبادت يې کوئ تاسې. نه يئ تاسې (ای عابدانو او معبودانو په دغه بُت پرستی سره) فتنه اچوونکي (د هيچا). مګر د هغه چې ننوتونکي د دوزخ دي (د الله تعالی په علم کې).

تفسير: ډېر خلق داسې ګڼي چې د پيريانو په لاس کې د بدۍ او پرښتو په لاس کې د نېکۍ واک او اختيار شته، هر چا ته چې دوی وغواړي ښېګڼه وررسوي، او الله تعالى ته يې مقرب ګرځوي، او هر يوه ته چې دوی وغواړي؛ بدي او تکليف رسوي، يا يې ګمراه کوي، ښايي د دغو مفروضه وو اختياراتو په بناء يې دوی د الله تعالى اولاد يا خُسر ګرځولي وي، نو دلته يې د دغې خواب ورکړی دی، چې نه ستاسې او نه د دوی په لاس کې څه مستقل اختيار شته، تاسې او هغه شياطين چې تاسو يې عبادت کوئ که ګرد سره يو ځای شئ؛ د دغې خبرې قوت او قدرت نه لرئ چې بې د الله تعالى له مشيته يو متنفس هم په جبر او اکراه سره ګمراه کړی شئ، ګمراه خو همغه څوک کيږي چې الله تعالى دی د ده د بد استعداد په بناء دوزخي ليکلی وي، او د خپلې بدکارۍ په سبب خپل ځان دوزخ ته رسوي، (بيا وويل جبريل عليه السلام محمد صلى الله عليه وسلم ته):

وَمَا مِنَّآ إِلَّا لَهُۥ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ ﴿١٦٤﴾

او نشته له مونږ ځنې هيڅوک مګر چې مقرر دی ورته يو مقام ځای معلوم.

تفسير: الله تعالى دغه کلام د پرښتو له ژبې او د دوی له جانبه فرمايلی دی، لکه چې په ډېرو ځايونو کې د انسانانو له جانبه دعاوې فرمايي، يعنې د هرې لويې پرښتې لپاره يو حد مقرر دی، چې دا له هغه حده نشي وړاندې کېدی، دا يې ځکه وفرمايل چې کافران وايي چې: پرښتې د الله تعالى لوڼه دي، چې د پيريانو له ښځو څخه پيدا شوي دي، حال دا چې پيريانو ته د دوی حال په ښه شان سره معلوم دی، او پرښتې داسې وايي چې: مونږ د دغې خبرې له سره طاقت او توان نه لرو چې د الله تعالى له احکامو د يوې ذرې په اندازه هم تجاوز او تخلّف وکړی شو.

وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلصَّآفُّونَ ﴿١٦٥﴾

او بېشکه مونږ خامخا مونږ صف تړونکي يو (په وخت د طاعت کې).

تفسير: يعنې په خپلو حدودو کې هر څوک د الله تعالى عبادت او د ده د احکامو د منلو لپاره تيار ولاړ دي، او له سره هيڅ يو د دې خبرې طاقت او توان نه لري چې له هغه څخه د ويره ويښته په اندازه هم وړاندې وروسته وښوييږي.

وَإِنَّا لَنَحْنُ ٱلْمُسَبِّحُونَ ﴿١٦٦﴾

او بېشکه مونږ خامخا مونږ تسبيح ويونکي يو.

تفسير: يعنې تر دې ځای پورې د پرښتو کلام ختم شو، وروسته له دې نه د مکې معظمې د خلقو حال بيان فرمايي.

وَإِن كَانُوا لَيَقُولُونَ ﴿١٦٧﴾ لَوْ أَنَّ عِندَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٦٨﴾ لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿١٦٩﴾ فَكَفَرُوا بِهِ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿١٧٠﴾

او بېشکه چې وو (دغه کُفّار) خامخا ویل به یې داسې. چې که چېرې بېشکه وی له مونږ سره ذکر (کوم کتاب) له پخوانیو (کتابونو) څخه. نو خامخا وو به مونږ بندګان د الله مخلصان. (بیا چې ورته راغی دغه قرآن؛) پس کافران شول په دغه (کتاب)، پس ژر ده چې پوه به شي دوی (په عاقبت د دې کفر خپل).

**تفسیر:** د عربستان خلقو څه مهال چې د انبیاوو نومونه او قصې اورېدلې، او د دوی له علم څخه بې خبران وو؛ نو پخپلو منځ کې به یې سره داسې ویل: «که مونږ ته د دغو پخوانیو علوم حاصل وی، یا پر مونږ باندې هم کوم اسماني کتاب یا د پند او نصیحت خبرې نازلېدی؛ نو مونږ به پر هغو په ډېر ښه شان سره عمل کوه، او خپل حسن الأعمال به مو نورو ته هم ښوول، او په معرفت او عبادت کې به مو تر دغې اندازې پورې ترقي او پرمختګ کاوه، چې د الله تعالی په مخصوصو او منتخبو بندګانو کې به شاملېدو»، اوس چې د دوی په منځ کې نبي الله صلی الله علیه وسلم مبعوث شوی دی، دوی له خپلو هغو خبرو څخه اوښتي دي، او هغه خپل قول او اقرار یې هېر کړی دی، نو د دغه انحراف څخه کومه نتیجه او انجام چې دوی ته پېښېدونکی دی؛ دوی به یې عنقریب وګوري.

وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧١﴾ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ ﴿١٧٢﴾ وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴿١٧٣﴾

او خامخا په تحقیق پخوا لا صادر شوی دی حکم ځمونږ لپاره د بندګانو ځمونږ مرسلینو. چې بېشکه دوی هم له دوی سره مدد کړی شوی دی. او بېشکه لښکرې ځمونږ خامخا همدوی بریالیانې دي (په کفارو).

**تفسیر:** یعنې دغه خبره د الله تعالی په علم کې مقرره شوې ده، چې د منکرینو په مقابل کې پاک الله له خپلو انبیاوو سره مدد او معاونت کوي، او بالآخر د الله تعالی لښکر غالب او بریالی کېږي، اګر که ضمناً حالات په هر ډول او هر وضعیت سره واوړي او لوړېږي او ټېټېږي؛ مګر فتحه، بری او کامیابي هرومرو د مخلصو بندګانو لپاره ده، او دغه نصرت هم د حُجّت او برهان په اعتبار او هم د ظاهري تسلّط او غلبې په معیار وي، مګر په دغه شرط چې دغه «جند» في الواقع «جند الله» وي.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتَّىٰ حِينٍ ﴿١٧٤﴾ وَأَبْصِرْهُمْ فَسَوْفَ يُبْصِرُونَ ﴿١٧٥﴾

پس مخ وګرځوه ته (ای محمده !) له دوی نه تر یوه وخته پورې. او ګوره ته دوی ته پس ژر ده چې وبهویني دوی (عاقبت خپل).

**تفسیر:** یعنې اوس څو ورځې نور هم دوی ته څه مه وایئ !، او په صبر او استقامت سره د دوی حال ته وګورئ، دوی به هرومرو خپل انجام وګوري، لکه چې ویې هم لید، کله چې وویل منکرانو تمسخراً چې کله به وي نزول د عذاب؟ نو نازل شو:

أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ ﴿١٧٦﴾ فَإِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمْ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنذَرِينَ ﴿١٧٧﴾

آیا پس (په راتلو) د عذاب ځمونږ تلوار کوي دوی. پس کله چې نازل شي (عذاب) په میدان (غولي) د دوی؛ پس بد به وي سبا د ویرولیو شویو.

تفسیر: ﴿فَسَوۡفَ يُبۡصِرُونَ﴾ (ژر دی چې وبه وینی عذاب) شاید د اورېدلو په اثر به دوی داسې ویلي وي چې: اوس نو ژر شه ! څمونږ عاقبت خاتمه او انجام مونږ ته اوښیه !، نو د هغه ځواب یې داسې ورکړ چې: پر خپل ځان باندې د آفت د ژر غوښتلو دغه شورماشور چې تاسې نښلولی دی، کله چې وخت یې راشي؛ هغه به ډېر بد وخت وي، د الله تعالی عذاب داسې درځي لکه چې کوم دښمن سرې ته څوک په پټوني کې د شپې پټ ناست وي، او ګهيځ د وخته يو ځلي په میدان کې ځان ورښکاره کړي، او پر خپل غليم په ډانګ پيلې (ښكاره) داړه واچوي، د الله تعالی د عذاب د نزول په وخت کې به د هغو خلقو حشر هم داسې کیږي چې دوی پخوا له دې نه ویرولي شوي دي، او له آخرې خاتمې څخه په ښه ډول پوه او مطلع كړی شوي دي، لكه چې د مكې معظمې په فتح او په نورو ځايونو كې همداسې وشو، اوس بیا الله جلّ شأنه و أعظم برهانُه لپاره د تسلی د خپل رسول الله صلی الله علیه وسلم مکررًا مؤکدًا داسې امر فرمایې:

وَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ حَتَّىٰ حِينٖ ﴿۱۷۸﴾ وَأَبۡصِرۡ فَسَوۡفَ يُبۡصِرُونَ ﴿۱۷۹﴾

او مخ وګرځوه (ای محمده !) له دوی څخه تر يوې نېټې پورې. او ګوره (دوی ته) پس ژر ده چې وبه وینې دوی (احوال خپل).

تفسیر: ښايي چې ړومبنی وعده د دنيوي عذاب وه، او دغه به د اخروي عذاب وي، يعنې تاسې ورته ګورئ چې وروسته له دې نه دغه كفّار په آخرت کې څه څه عذابونه مومي.

سُبۡحَٰنَ رَبِّكَ رَبِّ ٱلۡعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿۱۸۰﴾ وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلۡمُرۡسَلِينَ ﴿۱۸۱﴾ وَٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿۱۸۲﴾

پاکي ده رب ستا لره (له هره عيبه او نقصانه) چې رب د عزّت (قوت غلبې دی، او پاک دی) له هر هغه څيزه چې (مشرکان يې ورته) نسبت کوي. او سلام دی پر (ټولو) مرسلينو استاځيو. او ټوله ثناء صفت خاص الله لره دی چې رب پالونکی د ټولو عالميانو دی.

تفسیر: د سورت په خاتمه کې یې د ګردو اصولي مضامينو خلاصه بيان كړه، يعنې د الله تعالی ذات له ټولو عيوبو او نقائصو څخه پاك او منزّه دی، په ګردو كماليه وو صفاتو او محاسنو موصوف دی، او ګردې ښېګڼې د ده په پاك ذات کې مجتمعې دي، پر ګردو انبياوو او رسولانو د ده له طرفه سلام راځي، چې د دوی د عظمت او عصمت او سالميت او منصوريت دليل دی.

تمت سورة الصافات بفضل الله تعالی ومنّه



# سُورَةُ صٓ

«د (صٓ) سورت مكي دى، (۸۸) آيته (۵) ركوع لري، په تلاوت كې (۳۸) او په نزول كې هم (۳۸) سورت دى، وروسته د «القمر» له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

صٓ وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ ۝١ بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ ۝٢

قسم دى په قرآن چې څښتن (خاوند) د پند، ذكر، بيان، شهرت، عظمت دى. بلكه هغه كسان چې كافران شوي دي په كبر، سركښى كې دي (له قبوله د حق)، او په مخالفت كې دي (له مسلمانى سره).

تفسير: يعنې دغه عظيم الشأن، عالي مرتبت قرآن چې په ډېرو عمده وو نصائحو سره ډك او په نهايت مؤثر طرز خلقو ته د هدايت او معرفت خبرې ښوونكى او پوهوونكى دى؛ په جګ غږ سره شهادت وركوي: هغه خلق چې له قرآني صداقت او د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم له رسالت څخه منكر دي، د هغه سبب داسې نه دى چې د قرآن په تعليم يا تفهيم كې څه نقص يا قصور شته، يا رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د ده په تبليغ او تبيين كې (معاذ الله) مقصّر دى، بلكه د دغه انكار او انحراف اصل سبب دا دى چې: دغه مخلوق دروغ پرې ترې، حماقت كوي، او د شقاق او نفاق د جذباتو په جال كې نښتي دي، كه چېرې دوى لږ څه له دغه دلدل څخه ووځي؛ نو د حق او صداقت ډېر صاف او پاك سړك د دوى په نظر ورځي.

كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ فَنَادَوا وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ ۝٣

(نه ګوري منكران چې) څومره ډېر هلاك كړي دي مونږ پخوا له دې څخه له اهل د زمانې، پس نارې به يې وهلې (عند نزول العذاب) حال دا چې نه به وو هغه وخت د خلاصېدلو.

تفسير: يعنې دوى ته دې معلوم وي چې د همدغه غرور او تكبّر په سبب او د انبياء الله د مقابلې او مجادلې په علّت پخوا له دې نه ډېر اقوام او ملل سره تباه او برباد شوي دي، هغه خلق هم تر ډېرو مودو پورې د الله تعالى له انبياوو سره جنګېدلي وو، بيا څه وخت چې پر هغوى هغه بد ساعت راغى، او د الله تعالى عذاب دوى له څلورو خواوو څخه چار چاپېر ونيول؛ نو سخت ووېرېدل، او شورماشور او غلغله يې ونښلوله، مګر د خلاصي او نجات موقع تېره شوې وه، او وخت او فرصت نه وو پاتې.

«لات» د «ليس» په معنى ده، چې «ت» تأكيداً پرې زائده شوې ده، او له «حين» سره مختص دى، چې ترې اسم يا خبر عمومًا محذوفيږي، «مناص» د واوي اجوف مصدر دى.

وَعَجِبُوا أَن جَاءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ ۖ وَقَالَ الْكَافِرُونَ هَٰذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ۝٤

او تعجب كوي (كفّار) له دې نه چې راغلى دى دوى ته (نبي) ويروونكى له دوى نه، او وايي دا كافران چې: دغه (ويروونكى نبي) ساحر كوډګر دى دروغجن.

تفسیر: یعني دوی وايي: که له اسمانه کومه پرښته راتلی، خو بيا هم يوه خبره وه، ځمونږ له منځه يو سړی راپورته شوی، او ځمونږ په ويرولو او ژړولو يې شروع کړې ده، او داسې وايي چې: زه د اسمان والا الله له جانبه راغلی يم، دغه يوه ډېره عجيبه خبره ده، اوس ماسوا له دې نه بل څه وويل شي: چې يوه کوډګر يوه د دروغو ننداره جوړه کړې ده، او د کوډو په زور دغه ننداري او کرشمې راښيي، او ورته معجزه وايي، او څو د افسانې خبرې يې هم راټولې کړي دي، او د هغو په نسبت داسې دعوی کوي چې دغه د الله تعالی رالیږلي شوي علوم دي، او زه يې رسول يم.

أَجَعَلَ الْآلِهَةَ إِلَٰهًا وَاحِدًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ عُجَابٌ ۝ وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَىٰ آلِهَتِكُمْ ۖ

آيا ده ګرځولي دي دغه معبودان الله يو؟ بېشکه دغه (ګرځول د ډېرو معبودانو يوه ته، چې تاسې نور معبودان پرېږدئ، او د يوه الله عبادت کوئ؛) خامخا يو څيز ډېر عجيب دی (چې مثل نه لري). او لاړل په تلوار سره مشران له دوی نه (له مجلسه چې سره ويونکي وو يو بل ته) چې ځئ (پاڅئ له دې ځايه)، او صبر وکړئ (او محکم اوسئ) پر (عبادت د) معبودانو خپلو.

تفسیر: یعني دغه بل هم درواخلئ ! د دومره بېشماره معبودانو دربارونه دی بندوي، او يواځې يو الله يې پرېښی دی، له دې نه بله لويه د تعجّب خبره به څه وي چې د دغومره لوی جهان انتظام يواځې همدغه يو الله ته وسپارلی شي؟.

په رواياتو کې راغلي دي چې د ابو طالب په رنځورۍ کې ابوجهل او د قريشو څو نور غټان ابو طالب ته ورغلل، او هغه ته يې د رسول الله مبارک شکايت يووړ، چې دغه ستا وراره ځمونږ معبودانو ته بدې ردې خبرې کوي، او مونږ ته په څو څو ډوله (قسمه) احمقان او ناپوهان وايي، تاسو ده ته نصيحت وکړئ !، کله چې ابو طالب دغه خبرې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وکړې؛ ده د هغه په ځواب کې وويل: «ای تره ! زه تشه له دوی نه يوه کلمه غواړم چې وروسته له هغه به ګرد عرب د دوی مطيعان او عجميان به د دوی خدمتګاران شي، او نور اديان به ورته جزيه ورانديې کړي»، دوی خوشال شول او ورته ويې ويل: «چې هغه څه شی دي؟ تاسو خو همغه يوه کلمه ووايئ، مونږ ستاسې د لسو کلمو منلو لپاره تيار ولاړ يو»، رسول الله صلی الله عليه وسلم مبارک وفرمايل: «نه ! هغه خو همدا يوه د «لا اله الا الله» پاکه کلمه ده»، کله چې هغوی دغه خبره واورېدله؛ ډېر په قهر او غصه شول، او تاوکړې له هغه مجلسه پاڅېدل، او ويې ويل چې: مونږ دومره ډېر معبودان پرېږدو، او فقط ستا په خوله يواځې همدغه يو الله معبود ومنو !، ځئ چې ځو !، نه چې د ده په دغو تبليغاتو سره د کوم ضعيف الاعتقاد سړي پښه ځمونږ د دغې پخوانۍ آبائي او اجدادي طريقې څخه وښويږي، او دی پخپل مقصد بريالی (کامياب) شي، د ده د دغې بليغې سعيې او کوښښ په مقابل کې مونږ ته هم لازم دي چې ډېر زيات صبر، استقلال او استقامت له خپله ځانه ورښکاره کړو».

إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ ۝

بېشکه دغه شی (توحيد) خامخا يو شی دی چې اراده يې کړې شوې ده (له مونږ څخه).

تفسیر: یعني محمد صلی الله عليه وسلم ځمونږ د معبودانو په خلاف په جهاد لاس پورې کړی دی، ضرور په دغه کې د ده څه غرض شته، او هغه دا دی چې د يوه الله په نامه اخيستلو سره مونږ ګرد خپل ځان ته مطيع او محکوم وګرځوي، او خپل ځان ته حکومت او رياست حاصل کړي، نو لازم دي چې مونږ دی پرې نږدو چې پخپل دغه مقصد کې بريالی او کامياب شي، ځينې مفسرين د ﴿إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ﴾ مطلب داسې بيانوي: بېشکه دا همغه شی دی چې محمد صلی الله عليه وسلم د هغه ټينګه اراده کړې ده، او په هيڅ صورت له هغه څخه لاس اخيستونکی نه دی.

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْاٰخِرَةِ ۚۖ اِنْ هٰذَآ اِلَّا اخْتِلَاقٌ ۝۷

نه دی اورېدلی مونږ دغه (توحید، وحدانیت) په دین وروستني (عیسوي) کې، نه دی دغه (توحید) مګر له خپله ځانه جوړ کړی شوي دروغ دي.

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «چې خپل د پلرونو او نیکونو دین ته یې پخوانی دین ونه وایه، یعنې پخوا مو داسې اورېده چې پخوانیو خلقو به هم داسې خبرې کولې، مګر ځمونږ پلرونو خو داسې نه دي کړي، او نه یې دي ویلي»، او ممکن دي چې له پخواني دین څخه عیسایي دین مراد وي، لکه چې د اکثرو اسلافو قول دی، یعنې نصرانیان چې له أهل الکتاب څخه دي، د هغوی په نسبت هم مونږ داسې نه دي اورېدلي چې ګرد نور معبودان له منځه لرې کړي، اوتش یو الله یې پریښی وي، آخر دوی خو هم درې معبودان مني، او دوی هم دغه رسول د رسول په حیثیت نه مني، او وایي: که د ده د دغو ویناوو کوم اصل په نورو کتابونو کې وی؛ مونږ به هم ضرور منلی وی، معلومیږي چې دغه خبرې ګردې له خپل ځان څخه جوړې کړی شوي دي، (العیاذ بالله).

ءَاُنْزِلَ عَلَیْهِ الذِّکْرُ مِنْۢ بَیْنِنَا ۚ

آیا نازل شوی دی پر دغه (محمد) دغه ذکر قرآن له منځ ځمونږ (غټانو).

تفسیر: یعنې بالفرض دغه قرآن هم مونږ په نامنلي زړه د الله تعالی کلام منو، مګر څرنګه محمد صلی الله علیه وسلم په نبوّت سره منتخب شو؟ آیا په ټوله دنیا کې پرته له محمد صلی الله علیه وسلم بل د دې کار لپاره لایق نه وو؟ او همدغه لوی کار فقط همدغه ته پاتې وو؟ او بل کوم مشر، غټ، ستر، مالداره، جایداد لرونکی او بااعتبار سړی په دنیا کې نه مونده کېده چې خپل دغه کلام او د نبوت مهم یې د ده په لاس کې ورکړی وی؟.

بَلْ هُمْ فِیْ شَکٍّ مِّنْ ذِکْرِیْ ۚ بَلْ لَّمَّا یَذُوْقُوْا عَذَابِ ۝۸

بلکه دوی په شک کې دي له ذکره قرآنه پنده ځما، بلکه نه دی څکلی دوی عذاب ځما (که نه شک به یې ورک شوی وی).

تفسیر: دغه د الله تعالی له طرفه د دوی د دغې خبرې ځواب شو، یعنې د دوی دغه خرافات او واهیات هیڅ اصل او حقیقت نه لري، خبره فقط هم دغومره ده چې اوس دوی ته ځمونږ د خبرو په نسبت څه شک او اندېښنه ورپیدا شوې ده، او دوی پر دغه خبره یقین او باور نه لري چې هغه خوفناک مستقبل چې دوی ته یې خبر او اطلاع ورکوله کیږي، هرومرو واقع کېدونکی هم دی، ځکه چې دوی تر اوسه پورې د الله تعالی د ویشتلو خوند نه دی څکلی، څه مهال چې دوی د الله تعالی د ویشتلو خوند او مزه وڅکي؛ نو دغه ګرد شکوک او شبهات به یې لرې کیږي.

اَمْ عِنْدَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّکَ الْعَزِیْزِ الْوَهَّابِ ۝۹ اَمْ لَهُمْ مُّلْکُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَیْنَهُمَا ۟ فَلْیَرْتَقُوْا فِی الْاَسْبَابِ ۝۱۰

آیا په نزد د دوی دي خزانې د رحمت د رب ستا چې ډېر غالب قوي ښه ښونکی دی؟. آیا دوی لره دی سلطنت د اسمانونو او ځمکې او د هغو ګردو شیانو چې په منځ د دغو کې دی؟ پس ودې خیژي (دوی اسمان ته) په اسباب (رسوونکیو) سره.

تفسیر: یعنې د رحمت خزائن او د اسمانونو او د ځمکې ګرد حکومت د الله تعالی په لاس کې دی، الله ډېر زبردست او لوی بخشش والا دی، پر هر چا چې د هر انعام اراده وکړي؛ هیڅوک د هغه مانع نشي ګرځېدی، او نه پرې څه تنقید

او اعتراض کولی شي، که الله تعالی پخپل حکمت او علم سره کوم بشر ته د نبوّت او رسالت په منصب سره افتخار وببښي؛ نو تاسي د هغه په نسبت څه مداخله کولی شئ؟ آیا د رحمت د خزائنو او د اسمانونو او د ځمکې واکداره هم دا تاسي یئ؟ که یئ؛ نو خپل ګرد (ټول) وسائل، اسباب مو په کار واچوئ، او په اسمان پورې خپلې رسۍ وتړئ، او پر علویّاتو هم قبضه وکړئ !، او سم له خپلې مرضۍ سره د اسمانونو او ځمکو په تدبیر او انتظام کې که مو له لاسه پوره وي؛ ګوتې ووهئ !، او که دغه مو له واکه نه وي پوره؛ نو د اسمانونو او د ځمکې د حکومت او د رحمت د خزائنو د مالکیت دعوی بیخي غلطه ده.

﴿جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ⑪﴾

دوی خو یو لښکر ګوتی دی په دغه ځای کې چې ماتې ورکړی شوې، له هغو ډېرو لښکر څخه دي.

تفسیر: یعنې هیڅ نشته !، د اسمانونو او د ځمکې له حکومت او د رحمت د خزائنو له مالکیت سره دغه خواران څه اړه او تعلّق لري؟ دوی خو د څو ماتو او هزیمت خوړلیو انسانانو یوه ډله او جمعیت دی، چې د پخوانیو سپېرو او تباه شوواقوامو په شان لا له اوسه تباه او برباد په نظر راځي، لکه چې دغه منظره د خلقو له نظره د «بدر» له غزوې څخه د مکې معظمې تر فتحې پورې تېره شوه، شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې پخواني اقوام تباه شول، که دوی هم پر خپل طغیان او عصیان کې همداسې مداومت وکړي؛ نو د هغوی په شان دوی هم تباه او فنا کیږي»، ګواکې د دغه آیت ربط یې له پخواني آیت سره وښود، والله أعلم.

﴿كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ⑫﴾

تکذیب کړی وو پخوا له دوی نه قوم د نوح او (قوم د) عاد او (قوم د) فرعون چې خاوند د میخونو وو.

تفسیر: یعنې زور او قوت او لاو لښکر والا چې په دنیا کې یې د خپل سلطنت میخونه په ځمکه کې ټک وهلي وو، او ځیني وایي: هغه څوک چې سړی به یې په میخونو سره واژه، نو د دغه لامله د هغه نوم هم داسې: ﴿ذُو الْأَوْتَادِ﴾ میخ والا مشتهر شو، والله أعلم.

﴿وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ لْئَيْكَةِ ۚ أُولَٰئِكَ الْأَحْزَابُ ⑬ إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ⑭﴾

او (قوم د) ثمود او قوم د لوط او اهل د ځنګله (چې شُعیب ورمبعوث شوی وو)، دغه کسان (همغه) لویې لویې ډلې وې. نه ده (هر یوه د دغو ډلو) مګر نسبت د دروغو یې کړی وو رسولانو د (الله) ته، پس ثابت شو عذاب زما (دوی ته).

تفسیر: یعنې دغو ټولو لویو زوررو او طاقتورو افواجو هم څه وخت چې د الله تعالی رسولان دروغجن وشمېرل؛ د الله تعالی له سزا او عذاب څخه یې نجات ونه مونډ، نو ستاسې حقیقت څه دی؟.

﴿وَمَا يَنظُرُ هَٰؤُلَاءِ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ ⑮﴾

او نه کوي انتظار دغه کسان (کفار د مکې) مګر چغې یوې ته (د اسرافیل) چې نشته هغې ته هیڅ ډیل بېرته ګرځېدل.

تفسیر: یعنې د صور (شپېلی) د غږ منتظر دي، چې پوره سزا خو دوی ته په هغه وخت کې ورکوله کیږي، او ممکن دي چې له «صیحه» څخه دلته فقط یوه چغه او انضجار مراد وي.

وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّلْ لَنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿١٦﴾

او وايي (کفار تمسخرًا) ای ربه څمونږ! ژر راکړه مونږ ته برخه عملنامه څمونږ پخوا له ورځې د حساب.

تفسیر: یعنې هر کله چې دوی د قیامت خبرې اوري؛ نو په ټوکو او مسخرو سره وايي چې څمونږ د هغه وخت برخه اوس راکړه! تر څو مونږ همدا اوس خپله اعمالنامه وګورو او لاس په لاس له خپلې سزا څخه فراغت ومومو.

اِصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ ﴿١٧﴾

(فرمايي الله) صبر تحمّل کوه (ای محمده!) پر هغې خبرې چې وايي دوی (تاته)، او یاد کړه (قصه) د بنده څمونږ داود خاوند د قوّت (په عبادت کې)، چې بېشکه دی ډېر رجوع کوونکی وو (عبادت د الله ته).

تفسیر: شاه صاحب فرمايي: «په دغه ځای کې ده ته د داود علیه السلام قصه ور په یادوي، چې ده هم د «طالوت» د حکومت په عهد کې ډېر صبر کړی وو، څو بالآخر حکومت ده ته ورسېد، او «جالوت او نور» مخالفین ګرد (ټول) سره په جهاد کې پړه او مغلوب شول، چې همدغه وضعیت او نقشه څمونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وریېښه شوه.

إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ﴿١٨﴾

بېشکه چې مونږ تابع مسخّر کړي مو وو غرونه له دغه (داود) سره چې تسبیح به یې ورسره ویلې په آخره او په اوله برخه د ورځې کې.

تفسیر: یعنې سبا او بېګا کله چې داود علیه السلام په تسبیح کې مشغولېده؛ نو غرونو به هم له ده سره تسبیح ویل، د ده په متعلق څه مضمون د «سبأ» په سورت کې تېر شوی دی، هلته دې ولوست شي!.

وَالطَّيْرَ مَحْشُورَةً ۖ كُلٌّ لَهُ أَوَّابٌ ﴿١٩﴾

او (بل تابع او مسخر کړي وو مونږ) مرغان حال دا چې ټول کړی شوي به وو (صفونه صفونه) هر یو (له دوی) به ده ته رجوع کوونکی وو (په طاعت سره).

تفسیر: یا به ګرد (ټول) له ده سره یو ځای کېدل او د الله تعالی په طرف به یې رجوع کوله کما قال بعض المفسّرين.

وَشَدَدْنَا مُلْكَهُ

او قوي محکم کړی وو مونږ ملك سلطنت د دغه (داود).

تفسیر: یعنې پر دنیا باندې د ده د سلطنت رعب او دأب مو کېښودی وو، او پخپل نصرت او اعانت سره مو ورته د مختلفو اقسامو کثیر التعداد افواج ورکړي وو، او د ده قدرت او اقتدار مو په ښه شان سره ټینګ کړی وو.

وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿٢٠﴾

او ور مو کړ ده ته حکمت (نبوّت تدبیر د ټولو امورو) او فصل الخطاب (د حق او باطل بیان شافي په هر مقصد کې).

تفسیر: یعني لوی مدبّر او پوه وو، د هرې خبرې فیصله به یې په ډېر ښه صورت سره کوله، د وینا په وخت کې به یې ډېر فیصله کوونکی تقریر او وینا کوله، په هر حال الله تعالی ده ته نبوّت، ښه تدبیر، د فیصلې قوّت، او راز راز علمي او عملي کمالات ورعطاء فرمایلي وو، لیکن د ابتلاء او امتحان څخه ده هم نجات ونه موند، چې د هغه قصه اوس بیان فرمایي:

وَهَلْ أَتَاكَ نَبَأُ الْخَصْمِ إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾ إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُودَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ

او آیا راغلی دی تا ته (ای محمده !) خبر د جګړه کوونکیو کله چې راوختل په دیوال عبادتخانې ته. کله چې ننوتل پر داود باندې (او ده ولیدل) پس وویرېد (داود) له دوی نه (چې دوی ولې راوختل له دیواله؟ او ولې راننوتل بې له اجازې نه؟).

تفسیر: داود علیه السلام درې ورځې یې سره داسې تقسیم فرمایلې وې، چې یوه ورځ د عمومي دربار او فصل الخصوماتو لپاره وه، یوه ورځ له خپل اهل او عیال سره اوسېدل، یوه ورځ به خالص د الله تعالی د عبادت لپاره وه چې په دغه ورځ کې بېخي په خلوت کې کېناستل، او پیره دارانو ته به یې امر ور کاوه چې هیچا ته اجازه مه ورکوئ چې ماته راشي.

یوه ورځې چې داود علیه السلام په عبادت کې مشغول وو، یو ناڅاپه څو سړي له دېواله راختلي ده ته مخامخ ودرېدل، داود علیه السلام سره له خپله هغه فوق العاده قوت او شوکت د دغه خلاف التوقّع حرکت څخه وویرېد او متحیر شو، الغرض یو ناڅاپه یې د دغې عجیبې او مهیبې واقعې له لیدلو څخه یې افکار او خیالات مشوش او متفرق شول، او په خپل عبادت کې په همغه خشوع او خضوع چې پخوا مشغول وو؛ نشو مشغولېدی.

قَالُوا لَا تَخَفْ ۖ خَصْمَانِ بَغَىٰ بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ ﴿٢٢﴾

وویل دوی: مه ویرېږه (مونږ دوه ډلې) جګړه کوونکي یو چې ظلم کړی دی ځینو ځمونږ پر ځینو نورو، پس حکم وکړه په منځ ځمونږ کې په حق سره، او لرې مه غورځوه (ظلم مه کوه پر مونږ باندې)، او برابر کړه مونږ سمې لارې (د انصاف ته).

تفسیر: دغو راتلونکیو ورته وویل چې: تاسې مه ویرېږئ ! او له مونږ څخه پخپل زړه کې څه فکر او اندېښنې ته لارې مه ورکوئ ! مونږ دواړه ډلې د خپلې یوې جګړې د فیصله کولو لپاره ستاسې په خدمت کې در حاضر شوي یو، او غواړو چې تاسې د هغې په نسبت یوه منصفانه فیصله وفرمایئ !، کومه بې لارې یا د ټال ورکولو خبره دې ښایي په کې نه وي، ځکه چې مونږ د عدل او د انصاف د سمې لارې د معلوملو لپاره راغلي یو، ښایي د دوی د دغې خبرې له عنوانه داود علیه السلام به لا مبهوت او متعجب شوی وي.

إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ﴿٢٣﴾

بېشکه چې دا (سړی) ورور څما دی، ده لره نهه نوي مېږې دي، او ما لره یوه مېږه ده، پس وایي دې ماته: کفیل وګرځوه ما د دې (یوې مېږې، او ماته یې راکړه)، او غلبه یې کړې ده پر ما په خطاب خبرو کې هم.

تفسیر: یعنې څمونږ جګړه دغه ده چې: څما د دغه ورور سره (۹۹) نهه نوي مېږې دي، او له ما سره یواځې یوه مېږه ده، خو دی غواړي چې همغه یوه مېږه هم له ما څخه په هر ډول سره چې وشي واخلي، او خپل سل مېږې پرې پوره کړي، او بل مشکل دغه دی چې دغه ورور مې همغسې چې په مال او دولت کې له مانه موړ او لوړ دی، په ژبه او خبرو کې هم له ما څخه لوړ او غوړ دی، هر کله چې دی خبرې کوي ما مغلوب او پړ کوي، او ګرد اوریدونکي د ده په لوري ګرځي او خبرې کوي، لنډه یې دا چې څما د حق د اخیستلو لپاره په جبر او تیري سره خبرې کوي.

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِۦ ۖ

وویل (داود) خامخا په تحقیق چې ظلم کړی دی ده پر تا په غوښتلو د مېږې (ګډې) ستا (چې یو ځای یې کړي) له مېږو (ګډو) خپلو سره.

تفسیر: داود علیه السلام به د شریعت په قاعده ثبوت او نور شیان طلب کړي وي، او په آخر کې یې داسې وفرمایل چې: «بېشکه که ستا دغه ورور همداسې کوي؛ خو دغه د ده تېری او ناانصافي ده، او غواړي چې په دغې وسیلې د خپل غریب او خوار ورور مال وخوري»، مطلب دا چې مونږ یې نه پرېږدو چې داسې وکړي.

وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْخُلَطَآءِ لَيَبْغِى بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ وَقَلِيلٌ مَّا هُمْ ۗ

او بېشکه چې ډېر له خلطاوو شریکانو خامخا ظلم کوي ځینې د دوی پر ځینو نورو مګر ظلم (تېری) نه کوي هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)، او ډېر زیات لږ دي (داسې کسان په منځ) د دغو شرکاوو کې.

تفسیر: یعنې دغه د شریکانو عادت دی چې یو پر بل باندې ظلم او تېری کوي، قوي حصه دار غواړي چې ضعیف وخوري، او له منځه یې لرې کړي، یواځې د الله تعالی ایمانداره او نېک بندګان له دې نه مستثنی دي چې د هغوی شمېر په دنیا کې ډېر لږ دی.

وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّـٰهُ فَٱسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾ فَغَفَرْنَا لَهُۥ ذَٰلِكَ ۖ

او متیقن پوه شو دواد په دې چې بېشکه همدا خبره ده چې وازمویه مونږ دی؛ نو ښښنه یې وغوښته له رب خپل او پرمخې پرېوت په دغه حال کې چې رکوع سجده کوونکی وو (الله ته) او بېرته راجع شو (الله ته په توبه سره). پس ومو ښښله مونږ ده ته هغه (خطا د ده).

تفسیر: د دغې قصې په اثر داود علیه السلام متنبه شو، چې دغه څما په حق کې یوه فتنه او امتحان وو، په مجرد د دې چې دغه خیال ور پیدا شو، له خپلې دغې خطا څخه یې معافي وغوښتله، او په ډېر عجز او نیاز یې سر په سجده کېښود، آخر الله تعالی د هغه خطا ورمعافه کړه، د داود علیه السلام هغه خطا کومه وه؟ چې د هغې په نسبت په دغو آیتونو کې اشاره ده، دهغه په نسبت مفسرینو ډېرې اوږدې قصې لیکلي دي، مګر حافظ عماد الدین ابن کثیر (رحمه الله تعالی) د هغوی په نسبت لیکي: «وقد ذکر المفسرون ههنا قصة أکثرها مأخوذ من الإسرائیلیات، ولم یثبت فیها عن المعصوم حدیث یجب اتباعه»، «دلته مفسرینو یوه قصه ذکر کړې ده، چې زیاته برخه یې اسرائیلیات دي، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه په کې داسې حدیث صحیح نه دی راغلی، چې د هغې پیروي واجب وګرځي».

وَإِنَّ لَهُۥ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَـَٔابٍ ﴿٢٥﴾

او بېشکه ده ته په نزد ځمونږ کې خامخا مرتبه ده، او ښه ځای د ورتلو دی.

تفسیر: یعنې لکه د پخوا په شان ځمونږ د دربار له مقربانو څخه دی، او په دغې غلطی سره د ده په تقرّب او په مرتبه کې څه فرق او توپیر نه دی راغلی.

يَـٰدَاوُۥدُ إِنَّا جَعَلْنَـٰكَ خَلِيفَةً فِى ٱلْأَرْضِ فَٱحْكُم بَيْنَ ٱلنَّاسِ بِٱلْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ ٱلْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱلَّذِينَ يَضِلُّونَ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌۢ

ای داوده ! بېشکه مونږ ګرځولی مو یې ته خلیفه په ځمکه کې (چې لوی سلطنت مو درکړی دی)، پس حکم وکړه په منځ د خلقو کې په حق سره او متابعت مه کوه د هوا (د نفس په احکامو کې)، پس ګمراه به کړي (دغه هوا) تا له لارې د الله، بېشکه هغه کسان چې ګمراه کېږي له لارې د الله شته دوی ته عذاب سخت.

تفسیر: ای داوده ! الله تعالی په ځمکه کې ته خلیفه ګرځولی یې، لهذا د هغه پر احکامو عمل او ټګ وکړه !، او د معاملاتو فیصله سم د عدل او انصاف او د الله تعالی له شریعت سره موافق وکړه !، څو په هیڅ یوه معامله کې هم د یوې ذرې د نفساني خواهش ادنی شائبه هم پیدا نشي، ځکه چې دغه شی انسان د الله تعالی له لارې څخه بې لارې کوي، او څه وخت چې انسان د الله تعالی له لارې څخه بې لارې شو؛ نو بیا دی د ښې ورځې خاوند کېدی نشي.

بِمَا نَسُوا۟ يَوْمَ ٱلْحِسَابِ ﴿٢٦﴾

په سبب د هېرولو د دوی ورځې د حساب لره.

تفسیر: یعنې د الله تعالی د احکامو د هېرولو په سبب به د قیامت په ورځ کې پر دوی باندې سخت عذاب نازلېږي.

وَمَا خَلَقْنَا ٱلسَّمَآءَ وَٱلْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَـٰطِلًا ۚ ذَٰلِكَ ظَنُّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنَ ٱلنَّارِ ﴿٢٧﴾

او نه دی پیدا کړی مونږ دغه اسمان او ځمکه او هغه ګرد مخلوقات چې د دغو دواړو په منځ کې دي په باطله سره، دغه (پیدا کول د دغو په باطلو سره) ګمان د هغو کسانو دی چې کافران شوي دي، پس عذاب هلاک خرابي ده لپاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي له اوره (چې سوځي به په کې).

تفسیر: یعنې داسې دې نه ګڼي چې فقط همدغه دنیوي ژوندون دی، چې هغه به په خوړلو، څښلو او چړچو سره په پای رسوو، او وروسته له هغه حساب، کتاب، ثواب، عقاب هیڅ نشته، دغسې خیالات همغه کسان لري چې وروسته له مرګه پر بل ژوندون اعتقاد نه لري، او ترې انکار کوي، نو د دغسې منکرانو لپاره د دوزخ اور تیار دی.

أَمْ نَجْعَلُ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ كَٱلْمُفْسِدِينَ فِى ٱلْأَرْضِ أَمْ نَجْعَلُ ٱلْمُتَّقِينَ كَٱلْفُجَّارِ ﴿٢٨﴾

آیا وبه ګرځوو مونږ هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) په شان د فساد کوونکو په ځمکه کې؟ (بلکه نه یې ګرځوو)، آیا وبه ګرځوو مونږ پرهېزګاران په شان د بدکارانو؟ (بلکه نه یې ګرځوو).

تفسیر: یعني ځمونږ د عدل او حکمت اقتضاء داسي نه ده چي نېک ایماندار بندګان له شریرانو او مفسدانو سره برابر او یو شان کړو، یا له ویریدونکیو سره هم هغسې معامله وکړو لکه چي له غاړه غړوونکیو او بېخوفه شریرانو سره یې کوو، نو ضروري شوه چي یو وخت د حساب او کتاب، ثواب او عقاب لپاره وټاکلی شي، لیکن مونږ په دنیا کي ګورو چي خورا ډېر نېک او ایماندار سړي په راز راز مصائبو، آفاتو او بلیّاتو کي اخته او مبتلا وي، او ډېر شریران، بدکاران او بیحیا سړي مزې، چړچې، عیش عشرت کوي، نو لا محاله د دې خبرې تسلیم لازمیږي، چي وروسته له مرګه یو بل حقیقي ژوندون شته، چي په هغه کي سم د صادق مخبر له وینا سره د دغې خبرې فیصله سم د حکمت او مصلحت د اقتضاء سره کیږي، او هلته به د هر صالح او طالح، نېک او بد د اعمالو په نسبت لازمه جزاء سزا صادریږي، نو بیا ﴿يَوْمِ الْحِسَابِ﴾ له اخبار څخه انکار څرنګه صحیح کېدی شي؟.

﴿كِتَٰبٌ أَنزَلْنَٰهُ إِلَيْكَ مُبَٰرَكٌ لِّيَدَّبَّرُوٓاْ ءَايَٰتِهِۦ وَلِيَتَذَكَّرَ أُوْلُواْ ٱلْأَلْبَٰبِ ۝٢٩﴾

(دغه قرآن) یو کتاب دی چي نازل کړی مو دی هغه تاته (ای محمده !) برکتناک دی، لپاره د دې چي فکر وکړي (کفّار) په آیتونو د ده او لپاره د دې چي پند واخلي پرې خاوندان د صافو عقلونو.

تفسیر: یعني کله چي د نېک او بد انجام سره یو شان نشي کېدی؛ نو ضروري وو چي کوم هدایت کوونکی کتاب د رب الأرباب له خوا نازل شي، څو خلق په ښې او معقولې او مقبولې طریقې سره د دوی له انجام څخه مطلع او خبردار کړي، لکه چي په دغه وخت کي دغه کتاب نازل شو، چي ورته قرآن المبین وایي چي د هغه په الفاظو حروفو، نقوشو، معانیو، مضامینو او نورو هر هر څیزونو کي خیر او برکت دی، او په دغه غرض نازل کړی شوی دی، څو خلق د ده پر آیتونو غور او دقّت وکړي، عقلمندان د ده له نصائحو څخه متمتع او منتفع شي، لکه چي د دې آیت نه پخواني آیت ته وګوري چي په څه صاف فطري او معقولې طریقې سره یې د «معاد» مسئله حل کړېده، چي ډېر لږ عقل لرونکی سړی هم که پرې غور او فکر وچلوي؛ نو پرې صحیحې نتیجې رسیږي.

﴿وَوَهَبْنَا لِدَاوُۥدَ سُلَيْمَٰنَ ۚ نِعْمَ ٱلْعَبْدُ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ۝٣٠﴾

او ومو باښه داود ته سلیمان چي ښه بنده وو، بېشکه چي دی ډېر رجوع کوونکی دی (الله ته).

تفسیر: یعني سُلیمان علیه السلام مو ورته وباښه، چي د ده ځوی او د ده په شان نبیّ الله او باچا وو.

﴿إِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِٱلْعَشِىِّ ٱلصَّٰفِنَٰتُ ٱلْجِيَادُ ۝٣١ فَقَالَ إِنِّىٓ أَحْبَبْتُ حُبَّ ٱلْخَيْرِ عَن ذِكْرِ رَبِّى حَتَّىٰ تَوَارَتْ بِٱلْحِجَابِ ۝٣٢ رُدُّوهَا عَلَىَّ ۖ فَطَفِقَ مَسْحًۢا بِٱلسُّوقِ وَٱلْأَعْنَاقِ ۝٣٣﴾

کله چي وړاندې کړی شو په ده باندې په آخر د ورځې کي هغه ګړندي خاصه اسونه په درېو پښو ولاړ او د یوې سوی نوکه یې په ځمکه لګولې. نو وویل (سُلیمان) بېشکه زه چي یم غوره مي کړه مینه د اسونو په ذکر د رب خپل تر هغه پورې چي پټ شو (لمر) په پرده کي. (بیا وویل سلیمان): بېرته راولئ دغه آسونه ماته (نو ورته راپې وستل) پس شروع وکړه (سُلیمان) په وهلو د دې (اسونو) په پنډیو او غاړو(یعني پښې او غاړې یې ترې پرې کړې).

تفسیر: کله چي سُلیمان علیه السلام د اسونو په معائنه او کتلو کي مشغول پاتې شو، نو د هغه وخت په لمانځه یا وظیفه کي ذهول پېښ شو، او نسیان د انبیاوو په حق کي محال نه دی، نو ویې فرمایل چي: وګورئ ! د دنیوي مال محبت چي

د دې خبرې سبب شو چې زه د الله تعالی له یاده غافل شوم، تر دې چې د لمر تر پرېوتو پورې هم خپله وظیفه مې ادا نه کړه، سلّمنا چې د دغه مال په محبت کې هم د عبادت یوه ډډه وه، او په هغه کې هم بالمآل د ذوالجلال یاد وو، مګر له خواصو او مقربینو سره دغه فکر او اندېښنې هم لګېدلې دي، چې د هر عبادت هر وخت چې مقرّر دی ښايي په هغه وخت کې له سره څه تخلّف واقع نشي، او که احیاناً په کې څه توپیر واقع شي؛ نو د هغه د غم او اندېښنې څخه سخت متأثر او ناآرامه کیږي، اګر که د معذوریت له جهته هم وي.

کله چې هغه اسونه بېرته راوستل شول؛ نو د الله تعالی د محبت له غلبې او د غیرت له شدته یې په توره سره د هغوی غاړې پرې او پنډۍ غوڅې کړې.

وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ وَأَلْقَيْنَا عَلٰى كُرْسِيِّهٖ جَسَدًا ثُمَّ أَنَابَ ﴿٣٤﴾

او خامخا په تحقیق ازمویلی دی مونږ سُلیمان او غورځولی مو وو پر تخت د ده یو جسد (بې روحه) بیا رجوع وکړه ده (الله ته).

تفسیر: په صحیح حدیث کې راغلي چې سُلیمان علیه السلام قسم یاد کړ چې: «زه نن شپه د خپلو ګردو ښځو کره ځم، چې شمېر یې اویا، یا نوي، یا سلو ته نژدې ښځې وې، او ځما هره یوه ښځه به یو یو هلک وځېږوي، چې دغه ټول به د الله تعالی په لاره کې جهاد وکړي»، پرښتې دغه خبره ورالقا کړه چې «ان شاء الله» ووایئ !، سره له دې چې «ان شاء الله» یې په زړه کې وو، مګر په ژبه یې «ان شاء الله» ونه فرمایل، د الله تعالی کارونو ته ګورئ چې له هغه مباشرت څخه د ده د دومره ښځو کره یو وړوکی هم پیدا نشو، یواځې له یوې ښځې څخه یو ناقص مولود موجود شو»، ځینې مفسرین وایي چې: دایه همغه ناقص مولود د ده پر تخت وغورځوه، او ورته یې وویل: «درواخله دا ده ستا د قسم نتیجه !»، همغه یې دلته په «جسد» (جثه) سره تعبیر کړی دی، د دغه وضعیت له لیدلو څخه سُلیمان علیه السلام سره له افسوسه او ندامته د الله تعالی په طرف رجوع وکړه، او د «ان شاء الله» په نه ویلو یې استغفار وکړ، «هو ! مقرّبینو ته زیات ربړونه (تکلیفونه) او زحمتونه پیښیږي»، په حدیث کې راغلي دي: «که ان شاء الله یې ویلي وی؛ نو بېشکه الله تعالی به همغسې کړي وی چې د ده ارزو او تمنّا وه».

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنۢبَغِي لِأَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِي ۖ إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ ﴿٣٥﴾

وویل (سُلیمان): ای ربه ځما ! مغفرت ښننه وکړه ماته، او راکړه ماته داسې ملک لوی سلطنت چې نه ښاییږي (او نه وي) بل هیچا لره وروسته له ما څخه، بېشکه همدا ته (ای ځما ربه !) ته ډېر ښونکی ورکوونکی یې.

تفسیر: یعني داسې عظیم الشأن سلطنت عنایت وفرمایه، چې ماسوا له ما څنې د بل هیچا په برخه نه وي، او نه بل څوک د هغه اهل ثابت شي، ښایي د سُلیمان علیه السلام دعا پدې خاطر وي چې د الله د دین په نشر کې زیات کوښښ وکړي، او د سلطنت په واسطه د الله دین په څمکه کې پلی کړي.

فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهٖ رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ ﴿٣٦﴾ وَالشَّيٰطِينَ كُلَّ بَنَّاءٍ وَغَوَّاصٍ ﴿٣٧﴾

پس مسخر تابع کړ مونږ دغه (سُلیمان) ته باد چې چلېده په امر حکم د ده سره نرم نرم هر چېرته چې اراده به وشوه د ده. او (مسخر کړل مونږ ده ته پیریان) شیطانان هر بناء کوونکی (د عمارتونو) او غوټه وهونکي (په لویو بحارو کې لپاره د ایستلو د جواهرو).

تفسير: يعنې پيريانو د سُليمان عليه السلام په حكم ډېر لوی لوی عمارتونه جوړول، او مرغلرې او نور قيمتداره شيان به يې له بحارو او سيندونو څخه په غوټه وهلو سره ايستل، د هوا او د پيريانو د تسخير او تابع گرځولو په نسبت پخوا له دې نه د «سبأ» په سورت او په نورو ځايونو کې لازمه تفصيلات ليکلي شوي دي.

وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ ﴿۳۸﴾

او (تابع مو كړل سليمان ته) نور (سركښ شيطانان) تړلي شوي په ځنځيرونو كې.

تفسير: يعنې ډېر نور پيريان وو چې هغوی د سركشۍ او تمرّد لامله په بندي خانه كې غورځولي شوي وو. (داسې ومو فرمايل سليمان ته):

هٰذَا عَطَآؤُنَا فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۹﴾

دغه (سلطنت او تسخير) عطا بخشش ځمونږ ده، پس احسان كوه (له هر چا سره) يا يې وساته (له خپل ځان سره) بې حسابه.

تفسير: يعنې كه چاته عطاء او بخښنه وركړې يا ورنه كړې؛ مختار يې، دومره بېحساب يې وركړ، او بيا د حساب او كتاب قيد يې هم ترې لرې كړ، شاه صاحب ليكي: «دغه بله مهرباني ده چې دغومره دولت او دنيا يې وركړه، او مختار يې وگرځوه، حساب او كتاب يې هم ورمعاف كړ، مگر ده به پخپله د خپل لاس له گټې څخه ډوډۍ خوړه، چې ټوكرۍ به يې جوړولې».

وَاِنَّ لَهٗ عِنْدَنَا لَزُلْفٰى وَحُسْنَ مَاٰبٍ ﴿۴۰﴾

او بېشكه چې ده ته په نزد ځمونږ خامخا قرب دی (په دنيا كې) او ښه ځای د ورتلو دی (په عُقبى كې).

تفسير: يعنې سره له سلطنته هغه مرتبه چې ځمونږ په نزد سُليمان عليه السلام ته حاصله ده، او په اعلى فردوس كې له اعلى څخه اعلى ځای چې د ده لپاره تيار دی؛ هغه خو عليحده او جلا دی.

وَاذْكُرْ عَبْدَنَآ اَيُّوْبَ ۘ اِذْ نَادٰى رَبَّهٗٓ اَنِّيْ مَسَّنِيَ الشَّيْطٰنُ بِنُصْبٍ وَّعَذَابٍ ﴿۴۱﴾

او ياده كړه (ای محمده !) بنده ځمونږ أيوب، كله چې غږ يې وكړ رب خپل ته چې: بېشكه زه چې يم مس كړی يم شيطان په ايذاء او تكليف سره.

تفسير: د عظيم الشأن قرآن له تتبّع څخه ظاهريږي، چې په هغو امورو كې چې په كوم پلو كې شر يا ايذاء وي، يا كوم صحيح مقصد فوتيږي؛ د هغه نسبت د شيطان په طرف كيږي، لكه چې د موسى عليه السلام قصه كې راغلي دي ﴿وَمَآ اَنْسٰنِيْهُ اِلَّا الشَّيْطٰنُ اَنْ اَذْكُرَهٗ﴾ (۱۵ جزء د الكهف سورت (۹) ركوع (۶۳) آيت، ځمونږ د دغه مبارك تفسير) ځكه چې على الأكثر د دغه قسم شيانو قريب سبب يا بعيد سبب په يوه نه يوه درجه كې شيطان وي، د همدغې قاعدې په موجب ايّوب عليه السلام د خپلې رنځورۍ يا د تكليف او رېړ نسبت د شيطان په طرف وكړ، گواكې تواضعًا يا تأدّبًا يې دغه ښكاره كړه چې ضرور له ما ځنې څه تساهل يا كومه غلطي ځما له درجې سره سمه صادره شوې ده، چې د هغې په نتيجه كې دغه آزار راورسېد، يا د مرض په حالت او شدّت كې به شيطان د وساوسو د غورځولو كوښښ كړی وي، او ده به د هغه په مدافعت كې تكليف او تعب احساس كړی وي، نو هغه يې په «نصب» او «عذاب» سره تعبير فرمايلی دی، والله أعلم.

تنبیه: د ایوب علیه السلام قصه د «انبیاء» په سورت کې تېره شوې ده، هلته دې وکتله شي !.

نو د الله تعالی جلّ وعلا شأنه وعظُم برهانه له جانبه جبریل علیه السلام ایّوب علیه السلام ته داسې وویل:

ارْكُضْ بِرِجْلِكَ ۖ هَٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَشَرَابٌ ﴿٤٢﴾ وَوَهَبْنَا لَهُ أَهْلَهُ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٤٣﴾

ووهه (ځمکه) په پښه خپله (نو ویې وهله او اوبه راووتې)، دغه دی ځای د غسل یخ او اوبه د څښلو (نو غسل یې وکړ، اوبه یې وڅښلې جوړ شو). او ومو بښل دغه (ایّوب) ته اهل د ده او په مثل د دوی له هغوی سره له جهته د مهربانۍ له خپله طرفه، او لپاره د ذکر پند اخیستلو خاوندانو د صافو عقلونو ته.

تفسیر: کله چې الله تعالی داسې اراده وفرمایله چې ایوب علیه السّلام روغ او جوړ وګرځوي؛ نو پرې حکم یې وکړ چې خپله پښه پر ځمکه ووهـه، همدا چې ده خپله پښه پر ځمکه ووهله، د الله تعالی په کامله قدرت له هغه ځایه د یخو اوبو چینه وخوټېده، چې ده په هغه کې غسل وکړ، او له هغو اوبو څخه یې وڅښلې، او همدغه د ده د شفاء سبب شو، او د ده د هغې کورنۍ خلقو په مقابل کې چې مړه شوي وو؛ پخپلې مهربانۍ او فضل سره دوچنده خیلخانه ورعطاء کړه، څو عقلمن خلق د دغو واقعاتو له لیدلو څخه په دې ښه وپوهیږي، هغه بنده چې په مصائبو کې مبتلا کیږي؛ ښایي صبر وکړي، او الله ته رجوع وکړي، څو یې د ده حفاظت، کفایت، کفالت، او اعانت په ښه شان سره وفرمایي، (ومو فرمایه ایّوب ته داسې):

وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا فَاضْرِب بِّهِ وَلَا تَحْنَثْ ۗ إِنَّا وَجَدْنَاهُ صَابِرًا ۚ نِّعْمَ الْعَبْدُ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ ﴿٤٤﴾

او ونیسه په لاس خپل جارو (د کنځکو ـ ډکو) پس ووهـه په هغه جارو (د کنځکو ـ ډکو) سره (ښځه خپله)، او مه حانثوه ځان خپل (په ترک د وهلو کې)، بېشکه مونږ وموند دغه (ایّوب) صبرناک (په سختیو) ښه بنده وو دی، بېشکه چې دی ډېر رجوع کوونکی وو الله ته.

تفسیر: ایّوب علیه السلام د رنځورۍ په حالت کې پر کومې خبرې خفه شوی وو، او قسم یې یاد وو؛ کله چې زه روغ شوم نو پر خپله ښځه به سل ګزارونه وکړم، حال دا چې دغه بي بي د ابتلاء په حالت کې د ده صادقه خدمتګاره او صمیمه خادمه وه، اوچندان داسې کوم قصور او خطا یې هم نه درلوده، چې د وهلو وړ وی، نو الله تعالی د ده د قسم د رښتیا کولو یوه طریقه وروښوده، چې فقط همده ته مخصوصه ده، او که نن څوک داسې قسم یادوي؛ نو د هغه د پوره کولو لپاره به دغومره یوه خبره کافي نه وي.

وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ أُولِي الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ ﴿٤٥﴾

او یاد کړه (ای محمده !) بندګان څما ابراهیم او اسحاق او یعقوب خاوندان د قوت او بصیرت وو (کوونکي د صالحو اعمالو لیدونکي د آیات الله).

تفسیر: یعنې په دین کې د قوت او بصیرت خاوندان وو، چې د الله تعالی طاعت او بندګي یې په پوره توګه سره کوله، او الله تعالی ورته په دین کې پوهـه ورکړې وه.

إِنَّا أَخْلَصْنَاهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ ﴿٤٦﴾

بېشکه مونږ خالص کړي دي دوی په خالص خوی سره په ذکر یادولو د کور (د آخرت).

تفسیر: د انبیاوو امتیاز دا دی چې د دوی په شان بل هیڅوک د الله تعالی او د آخرت یادوونکي نشته، او د همدغه خصوصیت لامله دوی د الله تعالی په دربار کې له ګردو ځنې زیات ممتاز مراتب او مدارج حاصلوي.

وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٧﴾ وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ وَكُلٌّ مِّنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٨﴾

او بېشکه دوی په نزد ځمونږ خامخا له غوره کړیو شویو بهترو خلقو (د زماني خپلي) وو. او یاد کړه (ای محمده !) اسماعیل او الیسع او ذوالکفل (خاوند د ضمانت)، او دغه ټول (مذکورین) وو له خاوندانو د خیر (په خلقو کې).

تفسیر: د اسماعیل علیه السلام او ذوالکفل علیه السلام ذکر پخوا له دې نه تېر شوی دی، او الیسع علیه السلام د الیاس علیه السلام خلیفه وو، چې هغه ته هم الله تعالی نبوّت ورعطاء کړی وو.

هَٰذَا ذِكْرٌ

حال دا چې دغه (بیان د انبیاوو) ذکر پند دی (هر پند اخیستونکي ته، یا په دنیا کې ښه ذکر د دوی دی).

تفسیر: یعنې دغه مذکور خو د انبیاوو ذکر وو، وروسته له دې نه د عامو متقیانو انجام واورئ !.

وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ ﴿٤٩﴾ جَنَّاتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْأَبْوَابُ ﴿٥٠﴾

او بېشکه لپاره د پرهېزګارانو خامخا ښه ځای د ورتلو دی (په آخرت کې). جنّتونه دي د همېشه هستوګنې په دې حال کې چې تل پرانستلي وي دوی ته دروازې (د جنتونو).

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «کله چې جنتیان په جنت کې ننوځي؛ نو هر یو جنتي به بې د بل چا د ورښوولو سم برابر خپلې مانۍ او باغ او ټاکلي ځای ته ورځي»، او د دې خبرې ضرورت به ورته نه وي پاتې چې غږ وکړي، یا نارې ووهي، یا د وره د پرانستلو په انتظار کې ودرېږي.

مُتَّكِئِينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ ﴿٥١﴾

تکیه وهلي (ناست به وي مؤمنان) په دغو (جناتو) کې چې غواړي به په هغو کې مېوې ډېرې او (څیزونه د) څښلو.

تفسیر: قسماقسم مېوې، دانې، خوراک او نور مطلوبه شیان به دوی ته غلمان سم د دوی له غوښتنې سره سم د لاسه ورحاضروي.

وَعِندَهُمْ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ أَتْرَابٌ ﴿٥٢﴾

او وي به په نزد د دوی ښځې بندوونکې د سترګو (مېړو ـ خاوندانو خپلو ته) همځولې (پخپل منځ کې، یا له مېړو ـ خاوندانو سره).

تفسیر: یعنې ټولې ښځې به پیغلې نوې جونې او په یوه عمر او یوه منګ وي، یا په اشکالو، شمائلو، عاداتو، او اطوارو کې به له خپلو ازواجو سره هم عمر او یو شان وي، نو د الله تعالی له جانبه پرښته به ورته داسې وایي:

هٰذَا مَا تُوعَدُونَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۵۳﴾ إِنَّ هٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِنْ نَفَادٍ ﴿۵۴﴾

دا هغه دي چې وعده به يې کوله کېده له تاسو سره (په دنيا کې لپاره د خوښی) د ورځې د حساب. بېشکه چې دغه وعده خامخا داسې رزق ځمونږ دی چې نشته ده لره خلاصېدل.

تفسير: يعنې غير منقطع او لازواله نعمتونه دي، چې د هغوی سلسله به له سره هيڅېرې نه ختمېږي، او نه کميږي.

هٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطّٰغِينَ لَشَرَّ مَاٰبٍ ﴿۵۵﴾ جَهَنَّمَ ۚ يَصْلَوْنَهَا ۚ فَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۵۶﴾ هٰذَا ۙ فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ ﴿۵۷﴾

دغه (حال د مطيعانو وو)، او بېشکه لپاره د سرکشانو خامخا بده مرجع ده. (چې هغه) دوزخ دی چې ننوځي دوی په هغه کې، پس بده بستره ده (دا دوزخ). دا دی عذاب د کفّارو، پس ودې څکي دوی دا ايشېدلې اوبه (چې ټوټې ټوټې کيږي کُلمې د دوی) او (د دوخيانو د جراحاتو بدبويه) زوې.

تفسير: يعنې د متقيانو او پرهېزګارانو انجام مو واورېد، وروسته له دې نه د شريرانو انجام واورئ ! او بېشکه لپاره د سرکشانو خامخا بده مرجع دوزخ دی، چې ننوځي دوی په هغه کې پس بده بستره ده دا دوزخ، دا دی عذاب، پس ودې څکي دوی دا، يعنې درواخله ! دغه درحاضره ده د هغه خوند وڅکه !، له «غسّاق» څخه ځينې وايي چې د دوزخيانو د پرهارو زوې او وينې او نورې چټلې مراد دي، چې په هغو کې به د مارانو او لړمانو او د نورو زهر هم ګډ وي، او د ځينو په نزد «غسّاق» خورا ډېرو يخو او بې نهايته سړو اوبو ته وايي، چې د هغو له څکلو څخه له حده زيات تکليف او اذيت وررسيږي، ګواکې په دغه تقدير سره دغه د «حميم» ضد او کامل مقابل دی.

وَّاٰخَرُ مِنْ شَكْلِهٖٓ اَزْوَاجٌ ﴿۵۸﴾ هٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ ۚ لَا مَرْحَبًا بِهِمْ ۭ اِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿۵۹﴾ قَالُوْا بَلْ اَنْتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ ۭ اَنْتُمْ قَدَّمْتُمُوْهُ لَنَا ۚ فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿۶۰﴾

او څه بل (قسم عذاب) له قسمه د هغه تېر عذاب راز راز قسمونه. دغه يو فوج دی (د تابعانو) چې ننوتونکي دي په سختۍ له تاسې سره، نه دي وي خوشالي ځای د آرامۍ دوی ته، بېشکه چې دوی ننوتونکي دي اور ته. وايي (دغه تابعان متبوعانو ته) بلکه تاسې چې يئ؛ نه دې وي خوشالي په تاسې (په ځای موندلو د آرامۍ)، تاسې راوړاندې کړی دی دغه (عذاب) مونږ ته، پس بد قرار ځای دی (دا دوزخ).

تفسير: دغه خبرې او اترې به دوزخيان په خپلو منځونو کې سره کوي، څه وخت چې پرښتې دغه دوزخيان پرله پسې په شړلو او ټېل وهلو سره د دوزخ پر خندو (غاړو) ودروي، ړومبی ډله به د غټانو او سردارانو وي، وروسته له هغه به د دوی د تابعانو او پيروانو وي، د دغو تابعانو د ليدلو په وخت کې به له لرې څخه دغه متبوعان وايي چې: «دغه دی يو بل فوج له تاسو سره يو ځای په ټېل وهلو او کشولو او راښکودلو سره په دوزخ کې د غورځولو لپاره په زوره راوستل کيږي، د الله تعالی قهر او غضب دې وي پر دوی باندې، دوی هم دلته د عذاب ګاللو لپاره راغلل، الله تعالی دې وکړي چې دوی ته په بل کوم ځای کې کوم ارت مکان ورنه کړ شي»، د دغې خبرې د اورېدلو په اثر به هغوی د دوی جواب داسې ورکوي: «ای کمبختانو ! پر تاسې باندې دې د الله تعالی قهر او غضب وي !، پاك الله دې تاسو ته هيڅېرې د هوسايي (راحت) او آرامۍ ځای درنه کړي !، همدغه تاسو وئ چې ځمونږ د اغواء او اضلال وسائل مو را تيار کړي

وو، او مونږ ستاسې له لمسونه او غولولو نه په دغه کنده کې ولویدو، او په دغه سخت مصیبت او آفت کې اخته شو، اوس دغه راوښیئ چې چېرې لاړ شو؟ هر څه چې دي هم دغه ځای د دربدلو ځای دی، په هر ډول (طریقه) سره چې کیږي همدلته خپل ځانونه تر هغه پورې ټینګ او کلك کړئ ! چې ګرد (ټول) سره ومرئ !، او یو پر بل باندې خوله ولګوئ !، او په خپلو منځونو کې سره وخرئ !.

قَالُوا رَبَّنَا مَنْ قَدَّمَ لَنَا هٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿۶۱﴾

وبه وايي (تابعان) ای ربه څمونږ ! هر چا چې رومبی تیاره کړې ده مونږ ته دغه لاره (د کفر)؛ پس زیات کړه ورته عذاب دوچنده په اور کې.

**تفسیر:** یعنې په خپل منځ کې به یو بل ته طعن او لعن وايي، او بالآخر الله تعالی ته به داسې عرض کوي چې: «ای ربه ! هغه کسان چې له خپل شقاوته يې دغه بلا او مصیبت څمونږ پر سر راوستلی دی؛ د دوزخ په دوچنده عذاب يې اخته او مبتلا کړه !».

وَقَالُوا مَا لَنَا لَا نَرٰى رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُمْ مِّنَ الْأَشْرَارِ ﴿۶۲﴾ أَتَّخَذْنٰهُمْ سِخْرِيًّا أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ ﴿۶۳﴾

وبه وايي (مشرکان د کفارو) څه مانع ده مونږ ته چې نه وینو هغه سړي چې وو مونږ چې شمېرلي مو وو هغوی له اشرارو څخه. آيا نیولي مو وو دوی په مسخرو سره یا که کږې (چپې) شوي دي له هغوی څخه سترګې څمونږ (چې نه يې وینو په دوزخ کې).

**تفسیر:** هلته به دوی وګوري، چې ګرد د دوی دوستان، آشنایان، خپلوان او نور ټولې اعلی او ادنی خلق سره یو ځای غونډ او ټول کړی شوي دي، چې ګرد سره یو ځای په دوزخ کې وغورځول شي، مګر د هغو مسلمانانو پته او درك به دوی ته نه وي معلوم چې دوی له هغوی سره آشنايي او پېژندګلوي درلوده (لرله)، او پرې ټوکې او مسخرې به يې کولې، نو په حیرت او افسوس سره به داسې ووايي چې: مونږ څرنګه غلط کارونه کول چې له هغوی سره به مو مسخرې او ټوکې کولې، حال دا چې دوی د هغو وړ (لايق) او قابل نه وو، همدا ده چې نن هغوی هیڅ د دوزخ په شاوخوا او اطرافو کې نه ښکاري، یا خو هغوی هم په همدغو خلقو کې دي، مګر په سترګو نه ښکاري، یا څمونږ له سترګو څخه بیخي چېرې الوتي دي.

إِنَّ ذٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ ﴿۶۴﴾

بېشکه دغه (مذکوره قصه د اهل النار) خامخا حقه رښتیا ده جګړه کول د دوزخیانو په منځ خپل کې.

**تفسیر:** یعنې په ظاهر سره دغه خبره خلاف القیاس ښکاري، چې په هغې وېرې او خوف او پرېشاني کې به دوی یو له بل سره جګړې او مناقشې کوي، او دوی به څرنګه د عذاب په دغې هولناکې منظرې کې بل لوري ته متوجه کېدی شي؟ مګر په یاد يې ولره چې همداسې به کیږي، او دغسې پېښه بیخي په یقیني او واقعي ډول پېښیدونکې ده، چې په کې هیڅ د شك او شبهې ځای نشته، او په حقیقت کې دغه د هغوی د عذاب تکمیل دی.

قُلْ إِنَّمَا أَنَا مُنذِرٌ ۖ وَمَا مِنْ إِلٰهٍ إِلَّا اللّٰهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿۶۵﴾ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ﴿۶۶﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه همدا خبره ده چې زه ویروونکی یم (له عذابه)، او نشته هیڅ بل حق معبود بې له الله چې یودی، ډېر قهر کوونکی دی. رب د اسمانونو او د ځمکې او د هغو

مُحَمَّدٌ رَّسُولُ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِينَ مَعَهُۥٓ أَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ

محمد رسول او رالیږل شوی د الله دی (په حقه سره)، او هغه کسان چې له ده سره دي سختي کوونکي دي په کافرانو باندې.

تفسير: د کافرانو په مقابل کې هسې سخت، مضبوط او قوي دي چې له هغو څخه ګرد کافران ویریږي، او له کُفر څخه نفرت او بېزاري ښکاره کوي، لکه چې الله تعالی (د ۱۱ جزء د توبې د سورت په (۱۶) رکوع (۱۲۳) آيت کې) ﴿وَلْيَجِدُوا۟ فِيكُمْ غِلْظَةً ۚ﴾ فرمايلي دي: ، او همداسې (د «توبې» په لسمه رکوع (۷۳) آيت کې) ﴿وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ﴾، او د (۶ جزء د «مائدې» سورت په اتمه رکوع (۵۴) آيت کې) يې: ﴿أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَٰفِرِينَ ۚ﴾ فرمايلي دي.

رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ

مهربانان او زړه سواندي دي پخپلو منځونو کې

تفسير: دوی پخپلو منځونو کې يو تر بله ډېر شفقت او مهرباني کوي، يو په بل باندې د ضرورت په وخت کې سر ايږدي، له مال، ځان، اولاد ټولو نه ورته تيريږي.

تَرَىٰهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَٰنًا ۖ

وينې به ته هغوی، رکوع کوونکي او سجده کوونکي، غواړي دوی په دې عبادت سره فضل او مهرباني له الله تعالی نه، او غواړي رضامندي د هغه.

تفسير: دا هغه خاص بندګان د الله تعالی دي، چې په ټولو عملونو کې خصوصًا په لمانځه کې چې يو لوی رُکن د اسلام دی، يواځې او يواځې اخلاص او عجز الله تعالی ته ښکاره کوي، مهرباني او رضا د هغه غواړي، هيڅ رياکاري او نور باطل غرضونه د دوی په شان کې نه ليدل کيږي.

سِيمَاهُمْ فِى وُجُوهِهِم مِّنْ أَثَرِ السُّجُودِ ۚ

نښې د دينداری د دوی ثابتې دي په مخونو د دوی کې له اثر د سجدو نه، يعنې هغه انوار چې په اوداسه، لمانځه او سجدې سره په وجود د بنده کې پيدا کيږي؛ هغه نورانيت د دوی په وجودونو کې له ورايه بريښي.

تفسير: په اداء د لمانځه سره بنده ډېرو لوړو کمالاتو ته رسيږي، مشکلات د دنيا او د آخرت په لمانځه سره حل کېدی شي، خو په شرط د دې سره چې لمونځ کامل شي، اصحاب د أحمد صلى الله عليه وسلم اولين اشخاص دي چې دوی لمونځ کمال ته رسولی وو، نو ځکه الله تعالی د دوی صفت په قرآن کې بيانوي، اثر د نورانيت يې په سجدې سره د دې لپاره خاص ذکر کړی چې په سجده نه کولو سره شيطان له درباره د رحمت نه ورټل شو، او انسان به د همدې سجدې له لارې لوړو (اوچتو) کمالاتو ته رسيږي، د اووم اسمان ملائکې د پيدايښت د وخته نه تر پو کولو د شپېلۍ د اسرافيل عليه السلام پورې په سجده پرتې دي، دا د سجدې په اهميت او کمال بندګي ښايي.

ذَٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِى التَّوْرَىٰةِ ۚ وَمَثَلُهُمْ فِى الْإِنجِيلِ

دا اوصاف هغه اوصاف دي، چې مثالونه يې په تورات کې بيان شوي دي، او دا هغه اوصاف دي چې مثالونه يې په انجيل کې بيان شوي دي.

تفسير: د اصحابو د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د فضائلو او د کمالاتو بیان په نورو اسماني کتابونو کې هم راغلی دی، همدا وجه ده چې ډېرو پوهانو له اهل د کتاب نه چې تنګ نظري نه درلوده، اصحاب کرام به یې چې ولیدل؛ نو به یې سمدلاسه تصدیق کاوه، چې دوی په مثل د حواریونو د مسیح علیه السلام غوندې ښکاري.

كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ

لکه هغه کښت (فصل) چې راوباسي ځانګې خپلې، بیا یې ملا خپله ټینګه کړي، بیا کلکه شي دغه ځانګه، بیا ودرېږي دغه کښت (فصل) پس له ضعیفۍ او نرمۍ نه په پنډیو او بېخونو خپلو باندې.

تفسير: الله تعالی صحابه په تقویه د دین کې له کښت (فصل) او زراعت سره تشبیه کوي، یعنې لکه څنګه چې کښت او زراعت په څلورو مراحلو او مراتبو سره ثمر او پخوالي ته رسیږي؛ همدارنګه اصحابو خصوصاً راشدو خلفاوو پخپلو دورو د خلافت کې دین د اسلام یې درجه په درجه ثمر او پخوالي ته ورساوه، که د دوی مقام علمي، مناقب او تاریخ د کارنامو ولټول شي، دا څلور کلمې د دوی له کارنامو سره په ابلغه وجه سره داسې تشبیه کېدی شي، ﴿أَخْرَجَ شَطْأَهُ﴾ دوره د صدّيق، ﴿فَآزَرَهُ﴾ دوره د فاروق، ﴿فَاسْتَغْلَظَ﴾ دوره د ذي نورين، ﴿فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ﴾ دوره د اسد الله !، دوی هغه برجسته او غیور شخصیتونه دي، چې په کارنامو خپلو سره یې تاریخ د بشریت او د اسلامیت د همېش لپاره روښانه او ژوندی ساتلی دی.

يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ

په داسې حال کې چې قوّت د دې کښت (فصل) په تعجّب کې اچوي (خوشحالوي) بزګران (زمیدار).

تفسير: تشبیه د اصحابو له بزګرانو (زمیدارو) سره په تدبیر او غیرت کې، او تشبیه د دین د اسلام له کښت سره په قوّت او کثرت کې؛ ډېره ابلغه او مناسبه تشبیه ده، یعنې لکه څنګه چې اصحاب کرام په صدر اسلام کې ډېر کم او په یوه حالت د غربت او ناتوانۍ کې وو، خو وروسته ډېر قوّت او کثرت ته ورسېدل، حتی چې د نړۍ په ډېره برخه باندې مسلّط شول، او همدارنګه دین د اسلام هم په یوه حالت د غربت او ناتوانۍ کې وو، خو وروسته وروسته په ډېر زر وخت کې داسې قوّت او شهامت ته ورسېد، چې ټول جهان د هغې پیروۍ ته مجبور شو، او خلق فوج فوج په دین د اسلام کې داخل شول.

لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ

دا قوّت د دې لپاره دی چې په قهر راولي کُفّار.

تفسير: اسلام په دې قوّت او رونق سره، د کفارو په زړونو کې د حسد او کینې اورونه بلوي، چې دا کار پخپل ذات کې د دوی په زړونو او فکرونو کې لویه فتنه او مرض ګرځي.

وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٢٩﴾

وعده کړې ده الله تعالی له هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی، او عملونه نېک یې کړي دي، دوی لره د بښنې او د اجر ډېر لوی، چې (جنّت، لقاء او رضا د الله تعالی ده).

تفسير: دا وعده له هغو کسانو سره ده، چې ایمان لرونکي وي او ښه عملونه کوي، هغه څوک چې په داسې صفتونو موصوف وي، صحابه دي.

تمت سورة الفتح، ولله الحمدُ والمنّة.

# سُورَةُ الحُجُرَاتِ

«د (الحُجرات) سورت مدني دی، اتلس آيات او دوه رکوع لري»، په تلاوت کې (۴۹) او په نزول کې (۱۰۴) سورت دی، د (المجادلة) سورت څخه وروسته نازل شوی دی.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُقَدِّمُوْا بَيْنَ يَدَيِ اللهِ وَرَسُوْلِهٖ

ای هغو کسانو چې ايمان مو راوړی ! مه وړاندې کوئ مفکورې خپلې په مخکښې له صدوره د اوامرو د الله او د رسول د هغه، بلکه انتظار کوئ امر د هغوی لره.

تفسير: په کوم کار او فيصله کې چې د الله تعالی له طرفه او د رسول د هغه، له طرفه کومه اميدواري د اصدار د حکم لرئ؛ نو عجله مه کوئ چې پخپلې رايې او فکر سره حُکم وکړئ، بلکه انتظار وباسئ حکم د ذات احد لره، کله چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم ارشاد درته وفرمايي؛ نو په ډېر ښه سکوت او ادب سره د دوی مبارکو ارشاداتو ته غوږ ونيسئ، او په ډېر پاکې عقيدې سره يې قبول او په عمل کې يې پياده کړئ.

تنبيه: په انسانانو خصوصًا په مسلمانانو لازمه ده، چې اراء او افکار خپل په ټولو امورو کې !، تابع د اسلامي امورو وګرځوي، ځکه انسان په آراوو خپلو سره په ټولو امورو کې اعتماد نشي کولی، بلکه په سلو کې سل خطا کيږي او ناکاميږي، او پيروي د آراوو انسان له ټولو بدمرغيو او کړاوونو سره مخامخ کوي.

يواځې او يواځې اسلامي احکام دي، چې په ټولو لارو، چارو باندې سل په سلو کې ټيک وي، نو همدا وجه ده چې الله تعالی په مقابل د امر خپل او د رسول د هغې کې اختيار د بنده سلبوي، او فرمايي: ﴿وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّلَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ﴾.

که په دقّت سره څېړل وشي؛ ټولو ته په تجربه او مشاهده سره ثابتيږي، چې ټولې بدمرغی او کړاوونه بشريت ته، د پيروي د آراوو او خواهشاتو نه وررسيږي.

وَاتَّقُوا اللهَ اِنَّ اللهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝١

وويريږئ له الله تعالی څخې هر وخت، الله تعالی اورېدونکی او ښه پوه دی.

تفسير: حقيقي فرمانبرداري د الله تعالی هغه ده، چې د زړه له کومې وي، او که په خوله ناري سورې د اسلام او اصلاح وهي، او په زړه کې يې نفاق او عمل يې هم د فساد وي؛ داسې رويه د هيچا په درد نخوري.

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ وَاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝٢

ای هغو کسانو چې ايمان مو راوړی دی ! مه پورته کوئ آوازونه خپل برسېره پر آواز د پيغمبر، او په لوړه مه پورته کوئ ده لره آواز په خبرو کې لکه په لوړ آواز خبرې د بعضو د

تاسو له بعضو نورو سره، له جهته د وېرې د دې چې ضايع به شي عملونه د تاسې، او تاسې به پرې خبر نه يئ.

**تفسير:** د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مجلس کې به په داسې شور او غوغا سره غږېدل، لکه چې پخپلو منځونو کې به په هغې سره غږېدل، چې دا کار په داسې عالي حضور کې ډېره لويه بې احترامي او بې ادبي ده، او په بې ادبۍ سره انسان له لطف د رب او د رسول او د هر حضور عاليه څخې محروم پاتې کيږي، په ادب سره مقام د انسان له ملائکو څخې پورته کيږي، او په بې ادبۍ سره مقام له خاورو سره خاورې کيږي.

صالح اولاد په مقابل د مور او پلار، صالح شاګرد په مقابل د استاذ، صالح مأمور په مقابل د آمر کې څومره ادب ساتي، نو تر ټولو نه چې مهمتر او اول تر ادب وساتل شي، په مقابل د محمد صلى الله عليه وسلم کې دی، ځکه د هغوی مقام تر هر څه نه عالي او لوړ دی، که لږ څه تغيير په فکر د رسول الله صلى الله عليه وسلم کې پېښ شي ! ډېر خطر د دې شته چې عملونه ستاسې هبت او ضايع شي، او تاسې به پرې خبر هم نه يئ.

إِنَّ الَّذِينَ يَغُضُّونَ أَصْوَاتَهُمْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ

بيشکه هر هغه کسان چې ټيټوي آوازونه خپل په نزد د رسول الله دا ډله هغه کسان دي چې ازمويلي دي الله تعالى جلّ جلالُه زړونه د دوی لپاره د پرهېزګارۍ او وېرې له ده څخې.

**تفسير:** هغه څوک چې د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په مجلس کې په تواضع او ادب سره خبرې کوي، او د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په مقابل کې آوازونه خپل نه پورته کوي؛ دوی هغه کسان دي چې الله تعالى جلّ جلالُه د دوی زړونه د تقوی او پرهېزګارۍ لپاره آماده کړي، يعنې خپل الهي توفيق يې له دوی سره ملګری کړی دی.

لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ عَظِيمٌ ۝٣

دوی لره ده بخښنه، عوض او ثواب لوی.

**تفسير:** کله چې دوی په ډېر اخلاص او غيرت سره د شعائر الله احترام ساتي، او له رحمت للعالمين سره ډېر احترام او ادب ساتي، نو که کله وخت له دوی نه څه کوتاهي او خطا پيښيږي، الله تعالى ډېر مهربان دی د دوی ګناهونه بښي، او لوی اجرونه ورته نصيب کوي.

إِنَّ الَّذِينَ يُنَادُونَكَ مِن وَرَاءِ الْحُجُرَاتِ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ۝٤ وَلَوْ أَنَّهُمْ صَبَرُوا حَتَّىٰ تَخْرُجَ إِلَيْهِمْ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ۝٥

بيشکه هغه کسان چې چيغې وهي تا لره، د کورونو د أمّهات المؤمنينو نه له هغه خوا؛ اکثر د دوی عقل نه لري، که چېرې دوی صبر کړی وی تر هغو پورې چې راوتلی وې ته دوی ته؛ نو دا صبر به په خير تمامېده دوی لره، او الله تعالى جلّ جلالُه ډېر بښونکی او مهربان دی.

**تفسير:** د بني تميمو قوم د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم د ليدلو لپاره مدينې منورې ته راغلل، او رسول الله صلى الله عليه وسلم په کور کې تشريف درلود، دوی د بيرون نه ورته چغې وهلې: اى محمده ! راووځه !، دا د دې نه وه چې دوی پوهه نه درلوده، او ايجابات اخلاقي يې نه مراعات کول، محمد صلى الله عليه وسلم يې يو عادي شخص فکر کاوه، حال دا چې محمد صلى الله عليه وسلم عالي شخصيت دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن جَآءَكُمۡ فَاسِقُۢ بِنَبَإٖ فَتَبَيَّنُوٓاْ أَن تُصِيبُواْ قَوۡمَۢا بِجَهَٰلَةٖ فَتُصۡبِحُواْ عَلَىٰ مَا فَعَلۡتُمۡ نَٰدِمِينَ ۝٦

اى هغو كسانو چې تاسو ايمان راوړى !، كه چېرې راتګ وكړ تاسو لره فاسق او بدكار په يوه خبره سره؛ نو تاسو ښه تحقيق په كې وكړئ !، له جهته د وېرې د دې چې وبه رسوئ تاسو يوه قوم لره ضرر اوتاوان په ناپوهۍ سره، نو پس وبه ګرځئ تاسو په هغه څه سره چې مو عمل كړى دى؛ خفه او پښېمانه.

تفسير: ټولې شخړې او جګړې، بغض او عداوت، انسان ته د دروغو له لارې پېښېږي، نو له دې خاطره الله تعالى جلّ جلالُه بندګانو خپلو ته ارشاد فرمايي: كه چېرې تاسو ته كوم بدكاره انسان په كومه موضوع كې خبر دركوي !، تاسو په هغې كه ډېر فكر وكړئ، حق او باطل، رښتيا او دروغ يې ښه ځان ته ثابت كړئ، وروسته له هغې څخه په حل د موضوعاتو باندې اقدام وكړئ، لپاره د دې چې په احساساتو او تنګ نظرۍ سره مو كومه خرابي او ضرر رسولى وي؛ بيا يې جبيره مشكله او پښېماني يې هم څه په درد نخوري، چې په دې صورت كې به ظلم برقرار او عدالت نړېدلى وي، او حال دا چې انسان بايد عدالت برقرار كړي، او د ظلم رېښې له بېخ څخه وباسي.

وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ فِيكُمۡ رَسُولَ ٱللَّهِۚ لَوۡ يُطِيعُكُمۡ فِي كَثِيرٖ مِّنَ ٱلۡأَمۡرِ لَعَنِتُّمۡ

او پوه شئ تاسې چې په منځ ستاسې كې رسول د الله دى (نو مه وايئ دروغ) كه چېرې پيروي وكړي رسول الله صلى الله عليه وسلم تاسې لره په ډېرو امورو كې چې هغه خلاف د واقعيت او حقيقت وي؛ نو خامخا به تاسې په مشقت او ګناه كې لويدئ.

تفسير: كه رسول الله صلى الله عليه وسلم دكوم سړي پر راى او غوښتنې باندې عمل ونه كړي؛ نو تاسې مه خپه كېږئ ځكه چې حق د خلقو د غوښتنو يا د يوه او د بل د رايې نه تابع كيږي، كه داسې وشي؛ نو د ځمكې او د اسمانونو ګردې كارخانې سره خرابيږي.

وَلَٰكِنَّ ٱللَّهَ حَبَّبَ إِلَيۡكُمُ ٱلۡإِيمَٰنَ وَزَيَّنَهُۥ فِي قُلُوبِكُمۡ وَكَرَّهَ إِلَيۡكُمُ ٱلۡكُفۡرَ وَٱلۡفُسُوقَ وَٱلۡعِصۡيَانَۚ أُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلرَّٰشِدُونَ ۝٧ فَضۡلٗا مِّنَ ٱللَّهِ وَنِعۡمَةٗۚ

ليكن الله تعالى جلّ جلالُه دوست او محبوب ګرځولى دى تاسې ته ايمان او ښايسته كړى يې دى دغه (ايمان) په زړونو ستاسې كې، او بد او منفور يې ګرځولى دى تاسو لره كفر، فسق، او نافرماني له اوامرو د الله تعالى نه، (هغه تحقيق كوونكي په خبرونو كې) همدوى دي ثابت په دين حق باندې. له جهته د فضله له طرفه د الله نه، او د نعمت د ده له طرفه.

تفسير: كه تاسې دا غواړئ چې محمد صلى الله عليه وسلم ستاسې هره خبره ومني؛ نو خورا زيات مشكلات به پېښېږي، خو د الله تعالى شكر وكړئ چې هغه د خپل فضل او احسان په واسطه د قانتينو مؤمنانو په زړونو كې ايمان محبوب ګرځولى دى، او د كُفر او معصيت نفرت يې په كې اچولى دى، چې د هسې بې هودګيو په شاوخوا كې نه نژدې كيږي، په هغې مجتمع كې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف ولري، په هغې كې د بل چا د رايو او فكرونو منل چې پر ته له منلو د هغه څخه وي؛ نشي كېدى، او نه ښايي چې وشي، نن اګر كه رسول الله صلى الله عليه وسلم ځمونږ په منځ كې تشريف نه لري، مګر د هغوى پاک شريعت او د هغو وارثان او نائبان شته، او تل به وي.

﴿وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝٨﴾

او الله تعالى ښه عالم ښه حکمت والا دى.

تفسير: الله تعالى ته د ګردو استعداد ښه معلوم دى، او هر يوه ته پخپل حکمت سره هغه احوال او مقامات فرمايي، چې د هغه استعداد د ده په ځان کې وي.

﴿وَإِن طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِن بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَىٰ فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّىٰ تَفِيءَ إِلَىٰ أَمْرِ اللَّهِ ۚ فَإِن فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا ۖ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ۝٩﴾

که چېرې دوه ډلې د مؤمنانو (پخپلو منځونو کې) سره په جنګ او جګړه کې ولوېږي؛ پس روغه او صلحه وکړئ (اى نورو مؤمنانو) په منځ د هغو دواړو جنګ کوونکيو کې په نصيحت سره، او په بلنې سره حکم د الله او د رسول الله ته، نو که ظلم او تېرى وکړ يوې له دغو دواړو په هغې بلې ډلې باندې، يعنې چې صلح قبوله نه کړي، او حکم د الله او رسول الله ته راضي نشي؛ پس جنګ وکړئ تاسو ټول اى مؤمنانو له هغې (ډلې) سره چې ظلم او تجاوز کوي (پر هغې بلې مظلومې ډلې باندې)، تر هغه پورې چې بېرته راوګرځي دوى حکم د الله تعالى ته، او غاړه ورته کېږدي، او که چېرته وګرځېدله (دغه ډله بې انصافه له ظلم نه، او د الله تعالى حکم يې بېرته ومانه) پس صلح او روغه وکړئ تاسې په منځ د دوى کې په عدل او انصاف سره، عدل او انصاف کوئ تاسې اى مؤمنانو په هر کار کې، ځکه چې بېشکه الله تعالى دوست لري عدل او انصاف کوونکي (په قول او فعل کې).

تفسير: سره له دې ګردو مخ نيونو که د مسلمانانو د دوو ګوندو (ډلو) په منځ کې جنګ او جګړه پېښه شي، نو تاسې زيات کوښښ وکړئ چې هغه جګړه لرې شي، که په هغه برى ونه مومئ، او يوه ډله په بلې ډلې باندې بريد او تعرّض وکړي، او ظلم او زياتي ته ملاوې وتړي؛ نو تاسې د هغوى سيل او ننداره مه کوئ، بې پلوي او بېطرفي مه غوره کوئ، بلکه تېرى او تجاوز له هرې خوا چې وي ګرد مسلمانان دې په هغې کې سره يو شي، او له هغې سره دې جنګ وکړي، تر څو هغه ډله مجبوره شي، او روغې ته ځان وروړاندې کړي، او د خپلو تېريو او زياتي څخه لاس واخلي، او د الله د امر او حکم په لوري راشي، او روغې ته ځان وروړاندې کړي، نو مسلمانانو لره ښايي چې د دواړو ډلو په منځ کې په عدل او انصاف سره روغه وکړي، او يوه له بلې سره يو ځاى کړي، او د دواړو ډلو په مابين کې په طرفدارۍ کې د حق د لارې نه دېخوا او هغه خوا چپ (غلط) نشي.

تنبيه: د صحيحينو له روايت سره سم د دې آيت نزول د انصارو د هغو دوو ډلو په نسبت شوى دى، چې د (اوس) او (خزرج) په نامه سره مشهورې دي، او دوى پخپلو منځونو کې د ډېر جګړې سره کولې، رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د دې آيت په اساس د هغوى دواړو په منځ کې سره روغه وفرمايله، لکه چې په (۴ جزء د سورت آل عمران په (۱۱) رکوع (۱۰۳) آيت) کې دي: ﴿وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا﴾ الآية.

﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ۝١٠﴾

بېشکه چې مؤمنان ټول په دين کې سره وروڼه دي، نو پس صلح او جوړښت کوئ تاسې (اى مؤمنانو) په منځ د وروڼو خپلو کې (تل تر تله)، او وويرېږئ له الله تعالى څخه (په هر څيز او په هر وخت کې) او ځان ساتئ (له معاصيو) ښايي چې درباندې رحمت وکړ شي (له جانبه د الله).

تفسیر: د روغې او د جګړې په وخت کې بلکه په هر حالت کې ښايي دا تر سترګو لاندې وي، چې د دوو ورونو روغه يا جګړه دې د دښمنانو او کافرانو په څېر ونه بللہ شي !، کله چې دوی سره وروڼه کيږي؛ نو هغوی هم هغسې مه پرېږدئ، بلکه په ذات البيني اصلاح کې يې ډېر زيات کوښښ وکړئ، او د دې کوښښ کولو په وخت کې تل له الله تعالی څخه وويرېږئ !، چې له کومې خوا بې ځايه طرفداري ونه شي، يا د انتقامي جذبې له کبله کومه نښه په منځ کې ونه ليدله شي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٞ مِّن قَوۡمٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُونُواْ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ وَلَا نِسَآءٞ مِّن نِّسَآءٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُنَّ خَيۡرٗا مِّنۡهُنَّۖ وَلَا تَلۡمِزُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو !) ټوکې او سپکاوی دې نه کوي هيڅ يو قوم له تاسې څخه په بل قوم باندې، ځکه ښايي چې وي به دغه (مسخره کړی شوی) بهتره او غوره (په نزد د الله) له دې (مسخره کوونکيو) څخه، او (نه دې ټوکې او سپکاوی کوي) يو ټولی ښځې له تاسې په نورو ښځو، ځکه ښايي چې هغه (مسخرې کړی شوی) به بهترې او غوره وي (په نزد د الله له دې مسخره کوونکيو څخه)، او مه عيب جويي کوئ بعضې د تاسو د بعضې نورو، ځکه چې بيا د تاسو عيب جويي هم کيږي (چې دا په حقيقت کې د ځان عيب جويي ده)، او مه غواړئ تاسې يو تر بل په بد نومونو او القابو سره.

تفسیر: ړومبی يې د مسلمانانو د نزاع او جګړې د لرې کولو تدبيرونه راوښوول، بيا يې دا راوښوده که اتفاقاً اختلاف پېښ شي؛ نو په زور او مؤثرې طريقې سره دې هغه ورک کړ شي، خو تر کله پورې چې د نزاع خاتمه ونه شي؛ ښايي کوښښ وکړ شي چې لږ تر لږه د منافرت او مخالفت جذبې زياتې او مشتعلې نه شي.

په دې آيت کې الله تعالی مونږ ته داسې حکم فرمايي، چې يوه ډله دې له بلې ډلې سره مسخرې او ټوکې نه کوي، او نه دې يو په بل باندې ناوړه غږونه کوي !، او نه دې يو په بل پسې د عيب لټولو لپاره لويږي، او نه دې په بدو نومونو او ناوليو لقبونو سره يو بل ياد کړي، ولې چې له داسې خبرې څخه دښمني او نفرت ورځ په ورځ زياتيږي، او د فتنې او د فساد اور لا تيزيږي، سبحان الله ! دا څو قيمتدارې لارښوونې او هدايات دي !، که نن مسلمانان لږ څه ځير شي، د دوی د ګردو جګړو او جنګونو او د نورو اخلاقي رنځوريو د علاج نسخې په همدې د (حجرات) په سورت کې شته.

بِئۡسَ ٱلِٱسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ بَعۡدَ ٱلۡإِيمَٰنِۚ

بد دي دا درې نومونه د (سخرېې، تلمّز، تنابز) له جهته د فاسقې وروسته له ايمان درلودلو (لرلو) څخه.

تفسیر: د بل سړي د خراب نوم په اخيستلو سره پخپله هم هغه نوم اخيستونکی ګناهګاريږي، که پر هغه باندې هغه بد اثر وکړي، که يې ونه کړي، خو دی پخپله ځان بد تهذيب، فاسق، او ګناهګار او خلق ربړوونکی ښکاره کوي، خيال وکړئ چې مؤمن له ښکلي لقب سره دا بل لوری ښه ښکاري؟ او بل تفسير يې داسې کېدی شي: کله چې يو څوک مسلمان شي؛ نو بيا هغه ته په هغو پخوانيو خبرو باندې طعنه ورکول يا د هغه وخت په بدترينو القابو يادول لکه پرنګی، يهود، هندو او داسې نور؛ ډېر مذموم حرکت دی، همداسې هغه سړی چې په کوم عيب کې اخته وي، چې هغه يې په واک کې نه وي، يا يې له کومې ګناه څخه فرض يې کړئ توبه کړې وي؛ له هغه څخه د ژغورنې لپاره د هغه يادول ښه نه دي.

وَمَنْ لَّمْ يَتُبْ فَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۱﴾

او هغه چې توبه يې ونه ايستله؛ نو دغه کسان همدوی دي ظالمان (پر ځانونو خپلو).

تفسير: هغه ګناه چې پخوا شوې، له هغې څخه توبه وکړئ !، که د دې هداياتو او حکمونو د اورېدلو څخه وروسته دوی له هغو جرائمو څخه توبه نه کوي؛ نو د الله په نزد به اصلي ظلم همدا وي.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اجْتَنِبُوْا كَثِيْرًا مِّنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَّلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (ای مؤمنانو !) ځان وساتئ تاسې له ډېرو بدګمانيو او تهمتونو نه (په خلقو باندې)، بېشکه ځينې بد ګمانونه او تهمتونه ګناه ده، او مه لټوئ تاسې پټ عيبونه د مسلمانانو، او نه دې کوي غيبت ځينې ستاسې د ځينو نورو.

تفسير: د دوو تنو د اختلاف او تفريق په ډېروالي کې دا امور په خصوصيت سره داخل دي، يو فريق په بل فريق باندې داسې بد ګمان کوي چې حُسن ظن لره چې په حديث کې راغلی دی؛ هيڅ ځای نه پاتې کيږي، او له هرې يوې خبرې څخه څه ناڅه مخالفت کوي، که د هغه په خبرو کې د ښه والي له زرو احتمالاتو څخه د يوې خرابی احتمال هم متصور وي؛ نو د هغه فکر او چرت د هم هغې خرابی په لورې وردرومي، او له هغو ټولو ښېګڼو څخه يې سترګې پټوي، او د هم هغې کوچنی خرابی په شاوخوا کې چورلي، او هم هغه خرابه او کمزورې خوا ته يوه قطعي او يقيني بڼه او شکل ورښيي، او پخپل مقابل فريق باندې د تُهمت په الزام شروع کوي، نو پاک قرآن له دې ګردو ويناوو او خُرافاتو څخه منع کوي، که مونږ مسلمانان د پاک قرآن په احکامو باندې عمل وکړو، نو هغه ګرد اختلافات چې له بد قسمتی راپيښيږي، له خپله حده نه تيريږي، او د هغو ضررونه به محدود پاتې کيږي، بلکه په لږ مدّت کې به د هغه نوم او نښه هم ورکيږي، الزام لګول او د پټو خبرو لټول او د هر چا په شا خبرې کول؛ هيچا ته او هيڅ کله روا نه دي.

أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَّأْكُلَ لَحْمَ أَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ

آيا خوښوي يو له تاسې څخه دا چې وخوري غوښې د ورور خپل، حال دا چې مړ وي، پس بد ګڼي تاسې هغه؛ نو همدارنګه بد وګڼئ د مسلمان ورور غيبت او عيب لټول.

تفسير: د خپل مسلمان ورور غيبت کول داسې ګنده کار دی، لکه چې څوک د خپل هسې مړه ورور غوښه چې سخا شوي هم وي؛ پخپلو نوکانو سره شکوي، او خوري يې، نو آيا د ده دا چارې کوم انسان خوښوي؛ نو وپوهېږئ چې غيبت کول له دې نه هم يو شنيع او خراب کار دی، ټولې کينې او دښمنۍ او حتّی داسې نور ډېر بد عواقب ټول له غيبت نه پيدا کيږي.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ إِنَّ اللّٰهَ تَوَّابٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۲﴾

وويرېږئ تاسې له الله تعالى څخه، بېشکه الله ښه توبه قبلوونکی، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: په دې نصيحتونو باندې هم هغه څوک عمل کوي، چې په زړه کې يې د الله تعالى وېره وي، که د الله تعالى وېره نه وي؛ نو هيڅ نه کيږي، که پخوا د دې حکم له لوستلو څخه کومه غلطي يا تېرواته له هغوی څخه شوې وي؛ نو اوس ښايي د پاک الله په مخکښې د زړه له کومې توبه وکړي، او د هغه له مهربانۍ او لورينې څخه خپله ښښنه او مغفرت وغواړي چې مغفرت يې وکړي.

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اِنَّا خَلَقْنٰكُمْ مِّنْ ذَكَرٍ وَّاُنْثٰى وَجَعَلْنٰكُمْ شُعُوْبًا وَّقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوْا ۚ اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰىكُمْ ۚ

اى خلقو ! بېشکه مو پيدا کړي يئ تاسي (ټول اصلاً) له يوه سړي چې (آدم) او له يوې ښځې چې (حوا) ده، او ګرځولي يئ مونږ تاسي څانګې او قبيلې قبيلې، لپاره د دې چې وپېژنئ يو له بل سره، بېشکه چې ډېر مکرّم او معزّز له تاسي څخه په نزد د الله ډېر متّقي ادب لرونکی ستاسې دی.

تفسير: زياتره د غيبت، طعن، ذم او عيب لټولو منشأ کبر او غرور دی، چې آدمي خپل ځان لوی ګڼي، او نورو ته په حقارت او سپکه ګوري، نو ځکه الله تعالى دلته دا راښيي چې انسان لره نه ښايي چې پخپل اصل او نسب او لويي او عزّت باندې مغرور شي، بلکه ودې پوهيږي چې د انسان اصلي لويي او عزّت په دې کې دی چې ښه روش او ښه خصلتونه ولري، او تل له الله وويريږي، مؤدب او پرهېزګار وي، تر څو د دې ښو صفاتو په مېچ او اندازه د الله تعالى په دربار کې معزز، مکرّم او محترم شي، د نسب حقيقت خو دا دی چې ګرد نارينه او سړي له آدم او حوّاء عليهما السّلام څخه پيدا دي، سيدي، عثماني، فاروقي، صدّيقي، انصاري، شيخي، خاني، ځويتوب، او نورې ستاينې (صفتونه) د ښه علم، عمل او تقوی په مقابل کې هيڅ دي، او دا خاندانونه، صفتونه، او ستاينې پرته له دې څخه چې خلق پرې پېژندل کيږي، او په تعارف کې کار ورکوي؛ بل کوم قدر او قيمت نه لري، اصلي قدر او قيمت د هر سړي په دې کې دی چې متقي، پرهېزګاره او پوه وي.

اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌ خَبِيْرٌ ﴿۱۳﴾

بېشکه چې الله تعالى ښه عالم ډېر خبردار دی.

تفسير: تقوی او ادب په اصل کې د زړه کار دی، الله تعالى ته دغه ښه معلوم دي هر هغه سړی به چې په ښکاره ډول سره متقي او مؤدب په نظر راځي؛ هغه په واقع کې څنګه دی، او وروسته له دې څخه به څرنګه شي؟ عبرت آخرې خاتمې لره دی.

قَالَتِ الْاَعْرَابُ اٰمَنَّا ۭ قُلْ لَّمْ تُؤْمِنُوْا وَلٰكِنْ قُوْلُوْٓا اَسْلَمْنَا وَلَمَّا يَدْخُلِ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ

وويل صحرائيانو ايمان راوړی دی مونږ، ووايه (اى محمده ! دوی ته) له سره ايمان نه دی راوړی تاسې، وليکن ووايئ: اسلام راوړی دی مونږ، او له سره نه دی ننوتی ايمان په زړونو ستاسې کې.

تفسير: دلته دا راښيي چې ايمان او يقين کله چې په پوره ډول په زړه کې راسخ شي، او بيخ ونيسي؛ نو په هغه وخت کې غيبت، عيب لټول، او نور خراب خصلتونه له سړي څخې لرې کيږي، هر هغه سړی چې د نورو عيبونه لټوي، او ازار ورسوي؛ نو دی دې وپوهيږي چې تر اوسه پورې ايمان په پوره ډول په زړه د ده کې ځای نه دی نيولی.

تنبيه: له دې آيت څخه د ايمان او د اسلام فرق ښکاريږي، او همدا خبره له حديث د جبرئيل او نورو څخه هم ثابتيږي.

وَاِنْ تُطِيْعُوا اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ لَا يَلِتْكُمْ مِّنْ اَعْمَالِكُمْ شَيْئًا ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴﴾

او که حکم ومنئ تاسې د الله او د رسول د دغه (الله په اخلاص سره)؛ نو نه پرې کوي نه کموي (الله) له (جزاء د) عملونو ستاسې څخه هيڅ شی، بېشکه چې الله ښه مغفرت کوونکی ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: که اوس هم د الله تعالی د اوامرو د منلو لار غوره کړئ؛ نو د ړومبنيو کمزوريو لامله ستاسې له هيڅ يو عمل څخه د هغه ثواب نه کموي.

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ ﴿١٥﴾

ببشکه چې (صادقان) مؤمنان هغه کسان دي چې ايمان يې راوړی دی په الله او په رسول د دغه (الله) باندې، بيا شک نه کوي (په ايمان کې)، او جهاد کوي دوی په مالونو خپلو سره (چې لګوي يې په اعلاء د کلمة الله کې)، او په ځانونو خپلو سره چې جهاد کوي په لاره د الله کې؛ دا کسان همدوی رښتيني دي (په دعوی د ايمان کې).

تفسير: د رښتيني مؤمن شان دا دی چې په الله تعالی او د هغه په رسول باندې پوره او پوخ اعتقاد ولري، او د هغه په لاره کې په هر قسم سره چې وي؛ په مال او ځان سره حاضر وي.

قُلْ أَتُعَلِّمُونَ اللَّهَ بِدِينِكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٦﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) آيا خبروئ پوهوئ تاسې الله په دين د تاسې سره، حال دا چې الله ته معلوم دي هر هغه څيزونه چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه څيزونه چې په ځمکه کې دي، او الله تعالی پر هر څيز باندې ښه خبردار دی، هيڅ شی ترې پټ نه دی.

تفسير: که په رښتيا سره واقعي دين او پوره يقين تاسې لره حاصل وي؛ نو له تش ويلو څخه څه په لاس درځي؟ له هغه پاک الله سره چې ستاسو معامله ده، هغه ډېر ښه پرې پوهېږي، هر شی ورته ډېر ښه ښکاره او معلوم دی.

يَمُنُّونَ عَلَيْكَ أَنْ أَسْلَمُوا ۖ

احسان باروي دوی په تا باندې (ای محمده !) د دې چې تش مسلمانان شوي دي دوی.

تفسير: ځينې کوچيان او صحرائيان راځي، او وايي: وګورئ چې مونږ بې له جنګه او جګړې مسلمانان شوي يو، ګواکې دوی خپل احسان ښکاره کوي، او د دې ثواب وروسته له دې نه داسې ورکاوه کېږي:

قُل لَّا تَمُنُّوا عَلَيَّ إِسْلَامَكُم ۖ بَلِ اللَّهُ يَمُنُّ عَلَيْكُمْ أَنْ هَدَاكُمْ لِلْإِيمَانِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٧﴾

ووايه (ای محمده ! دوی ته) احسان مه باروئ تاسې په ما باندې د اسلام راوړلو د تاسې، بلکه الله احسان کوي په تاسې باندې د دې چې لاره يې وښووله تاسې ته د ايمان راوړلو، که يئ تاسې رښتيني او صادقان (په دعوی د ايمان کې).

تفسير: که په واقعي ډول تاسې د اسلام دعوی لرئ، او په رښتيا سره ايمانداران يئ؛ نو دا ستاسې احسان نه دی، بلکه د الله احسان دی چې تاسې ته يې د ايمان په لوري لاره دروښوده، او د اسلام په لوی دولت يې سرفرازي درکړه.

ګواکې د دې سُورت په پای کې يې تنبيه فرمايلې ده، که تاسې ته پر قرآني هداياتو او اسلامي تعليماتو باندې د عمل کولو توفيق په لاس درځي؛ نو هغه د احسان په ډول مه ورښکاروئ !، بلکه د الله تعالی أکرم شأنُه وأعظم برهانُه د شکر او انعام حق اداء کړئ، چې تاسې ته يې داسې توفيق درکړی دی.

إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ غَيْبَ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَاللَّهُ بَصِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٨﴾

بېشكه الله ته ښه معلوم دی غیب د اسمانونو او د ځمکې، او الله تعالی ښه لیدونکی دی په هغو کارونو باندې چې کوئ یې تاسې.

**تفسیر:** الله تعالی ته د زړونو پټې خبرې او ښکاره چارې ګردې ورمعلومې دي، نو د دغه علیم او خبیر په مخکې خبرې او بهانې مه جوړوئ !.

تمّت سورة الحجرات، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُوۡرَةُ قٓ

«د (قٓ) سورت مکّي دی، پر ته (۳۸) آیت څخه چې مدني دی، (۴۵) آیتونه (۳) رکوع لري»، په تلاوت کې (۵۰) او په نزول کې (۳۴) سورت دی، وروسته له (المرسلات) سورت څخه نازل شوی دی.

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قٓ ۚ وَالۡقُرۡاٰنِ الۡمَجِيۡدِ ۚ﴿۱﴾ بَلۡ عَجِبُوۡۤا اَنۡ جَآءَهُمۡ مُّنۡذِرٌ مِّنۡهُمۡ فَقَالَ الۡكٰفِرُوۡنَ هٰذَا شَىۡءٌ عَجِيۡبٌ ۚ﴿۲﴾ ءَاِذَا
مِتۡنَا وَكُنَّا تُرَابًا ۚ ذٰلِكَ رَجۡعٌۢ بَعِيۡدٌ ﴿۳﴾

قسم دی پر قرآن چې لوی شان لري. (او نه دي راوړی ایمان کُفّارو په تا ای محمّده) بلکه تعجّب کوي دوی له دې نه چې راغلی دوی ته ویروونکی له دوی څخه، نو وویل کافرانو: دا (ویرول) یو شی عجیب دی. آیا کله چې مړه شو مونږ او شو مونږ خاورې (بیا به هم ژوندي کیږو؟)، دغه بېرته راتلل ډېر لرې دي (له عقله).

تفسیر: الله تعالی په قرآنکریم قسم کوي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم نبوّت، او د مرګ نه پس ژوندون حق دی، لیکن کافران دا تعجّب کوي، چې څرنګه به مونږ راژوندي شو، په داسې حال کې چې خاورې شو، خو دوی په اول ځل پیدا کولو کې فکر نه کوي، چې الله تعالی څرنګه پیدا کړل، نو ده ته دوباره راپورته کول د دوی څه ګران دي؟.

قَدۡ عَلِمۡنَا مَا تَنۡقُصُ الۡاَرۡضُ مِنۡهُمۡ ۚ

(الله فرمايي د دوی د وینا په رد کې) په تحقیق سره معلوم دي مونږ ته هغه چې کموي يې ځمکه له وجوده د دوی.

تفسیر: ګرد وجود نه خاورې کیږي، روح سلامت پاتې کیږي، او د بدن اجزاء تحلیل کیږي، او په هر لوري تیت او پرک کیږي، خو الله تعالی ته هغه ګرد ښکاره دي، او کولی شي چې بیا هغه تیت پیت اجزاء سره راټول کړي، او بیا يې لکه اول ځلي جوړ او غوښه، پلې، رګونه او پوست پرې زرغون او سا په کې واچوي.

وَعِنۡدَنَا كِتٰبٌ حَفِيۡظٌ ﴿۴﴾

او مونږ سره یو کتاب دی په یاد ساتونکی د هر شي چې لوح محفوظ دی.

تفسیر: دا نه ده چې له نن څخه راښکاره او معلوم دي، بلکه د قدیمي علم مو دی، تر دې چې له هغه څخه پخواني قبل الوُقوع ګرد حالات هم په یو کتاب کې چې لوح محفوظ نومیږي، لیکل شوي دي، او تر اوسه پورې هغه کتاب ځمونږ سره شته.

بَلۡ كَذَّبُوۡا بِالۡحَقِّ لَمَّا جَآءَهُمۡ فَهُمۡ فِيۡۤ اَمۡرٍ مَّرِيۡجٍ ۝۵

بلکه نسبت د دروغو کړې دی دوی حق او رښتيني دين ته کله چې راغی دوی ته، پس دوی په ګډوډو مختلفو خبرو کې (مضطرب) دي.

**تفسير:** يواځې تعجّب نه بلکه په ښکاره ډول يې دروغ بولي، او ځمونږ د پيغمبر صلی الله عليه وسلم نبوّت قرآن، بعث بعد الموت او نور اعتقادي شيان هم دروغ ګڼي، او عجيبې ګډې وډې مختلفې او راز راز ويناوې کوي، بېشکه هر هغه سړی چې رښتيا خبرې دروغ بولي، په همداسې شکوکو، اضطرابونو، حيرانتياوو، تردد، تحيّر او تذبذُب سره غاړه په غاړه کيږي، او د ناپوهی په غړومبي (ګرداب) کې لويږي، ځکه چې له داسې يوه څرګند (ښکاره) امر نه انکار کوي، چې ثبوت يې له لمر نه هم روښانه دی، خو که نصوص او دلائل ولټول شي.

اَفَلَمۡ يَنۡظُرُوۡۤا اِلَى السَّمَآءِ فَوۡقَهُمۡ كَيۡفَ بَنَيۡنٰهَا وَزَيَّنّٰهَا وَمَا لَهَا مِنۡ فُرُوۡجٍ ۝۶

آيا پس نه ګوري دغه (منکران د بعث له غفلته) طرف د اسمان ته د پاسه د دوی چې څرنګه جوړ کړی دی مونږ هغه، او ښايسته کړی دی مونږ هغه، او نشته دغه آسمان ته کوم چاود (عيب).

**تفسير:** اسمان ته وګورئ !، چې په ښکاره ډول سره نه کومه ستنه په کې په نظر راځي، او نه کومه پايه لري، او نه له کوم شي سره تړلی شوی دی، داسې عظيم الشأن جسم يې څرنګه مضبوط او مستحکم درولی دی؟ د شپې له مخې د ستوريو په کروړونو قناديل ډيوې په کې بليږي، او د هغې منورې کرې له لرې لکه د بربښنا لويې ونې رابرېښي، او په مجموعي ډول څومره په سنګار او رونق ډولې ښکاري، له ګردو څخه غوره خبره دا ده چې سره له تېرېدلو د زرګونو قرنو څخه نه کوم سوری يا چاود په کې لوېدلی دی، نه يې کومه ګنګوره نړېدلې ده، نه يې پلاستر مات دی، نه يې رنګ الوتی دی، آخر دا کوم يو لاس دی؟ چې داسې مخلوق يې جوړ کړی دی؟ او بيا يې له ډېرو پېړيو راهيسې همداسې ساتلی دی؟.

وَالۡاَرۡضَ مَدَدۡنٰهَا وَاَلۡقَيۡنَا فِيۡهَا رَوَاسِيَ وَاَنۡۢبَتۡنَا فِيۡهَا مِنۡ كُلِّ زَوۡجٍۢ بَهِيۡجٍ ۝۷ تَبۡصِرَةً وَّذِكۡرٰى لِكُلِّ عَبۡدٍ مُّنِيۡبٍ ۝۸

او (آيا نظر نه کوي دوی) ځمکې ته (چې څرنګه ښه) غوړولې مو ده، او غورځولي مو دي په هغې کې درانه بارونه محکم غرونه، او زرغونه کړي مو دي په هغې (ځمکې) کې له هر قسم تازه ګياوې. د رونق شيان لپاره د ښوونې (د قدرت خپل)، او د پند او نصيحت هر هغه بنده ته چې رُجوع کوونکی وي الله ته.

**تفسير:** دويمه نښه د قدرت پيدايښت د ځمکې دی:

(الف): اوارول د هغې.

(ب): اچول د غرونو او مېخ کول د ځمکې په هغوی سره.

(ج): زرغونه کول د هر قسم ګياه او تازه بوټو په رونق سره.

(د): هر يوه د دې نښو څخه درس د عبرت ګرځي رښتينو بندګانو لره.

وَنَزَّلْنَا مِنَ السَّمَآءِ مَآءً مُّبٰرَكًا فَاَنْۢبَتْنَا بِهٖ جَنّٰتٍ وَّحَبَّ الْحَصِيْدِ ﴿۹﴾

او نازلې راښکته کړي دي مونږ له (طرفه د) اسمانه اوبه ډېرې برکتناکې؛ نو زرغونه مو کړل په دغو (اوبو) سره باغونه (چې هر راز مېوې لري)، او دانې د کښت چې فصل يې رېبلی کېږي.

تفسير: دريمه نښه د قدرت د اوبو راښکته کول دي له اسمانونو نه:

(الف): اوبه مبارکې او بابرکته چې هر شی په هغې سره ژوندی کېږي.

(ب): باغونه او دانې د کښتونو (فصلونو) چې په هغې سره زرغونېږي، غله هغه ده چې له هغې سره بوټي يې هم رېبل کېږي، او د باغ ونې سره له دې چې مېوې يې شکولی کېږي؛ ونې يې پخپله پاتې کېږي.

وَالنَّخْلَ بٰسِقٰتٍ لَّهَا طَلْعٌ نَّضِيْدٌ ﴿۱۰﴾

او (زرغونې مو کړلې په دغو اوبو سره ونې د) خرماوو لوړې، هغې لره وږي دي لاندې باندې.

تفسير:( ج): زرغونول د خرما د ونو، لوړې لوړې چې دوی لره وږي دي لاندې باندې، چې روزي ده لپاره د بندګانو، په ډېر کثرت او وفرت سره، چې د هغو وږي په ليدلو کې هم ډېر ښه ښکاري.

رِّزْقًا لِّلْعِبَادِ ۙ وَاَحْيَيْنَا بِهٖ بَلْدَةً مَّيْتًا ؕ كَذٰلِكَ الْخُرُوْجُ ﴿۱۱﴾

رزق روزي لپاره د بندګانو او ژوندي کړل مونږ په دغو (اوبو) سره کلي او ښارونه مړه، همداسې دي راوتل (د مړيو له قبرونو نه).

تفسير: (د): الله تعالی ژوندي کوي په دې اوبو د باران سره ښارونه او کلي مړه، يعنې چې بوټي او ګيا ټولې وچې او خزان وي، بيا يې ژوندي کوو او زرغوني کوو يې، نو نتيجه د دې دريو نښو سره له اجزاوو يې دېته شوه، چې تاسې انسانان هم داسې راوتونکي او ژوندي کولی شئ، لکه چې ګياوې زرغونې کېدونکې او راوتونکې دي، نو که تاسو عقل لرئ په خپل ژوند کې پس له مرګه هيڅ شک او شبهه مه کوئ !، لکه چې د باران په ورولو سره مړه ځمکه ژوندۍ کوي؛ همداسې د قيامت په ورځ مړي هم ژوندي کولی شي.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوْحٍ وَّاَصْحٰبُ الرَّسِّ وَثَمُوْدُ ﴿۱۲﴾ وَعَادٌ وَّفِرْعَوْنُ وَاِخْوَانُ لُوْطٍ ﴿۱۳﴾ وَّاَصْحٰبُ الْاَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ ؕ

نسبت د دروغو کړی وو پخوا له دغو (کفّارو) قوم د نوح (نوح ته)، او ملګري د کوهي (نبي خپل ته)، او ثموديانو (صالح ته)، او عاديانو (هود ته)، او فرعون (موسی ته)، او ورونړو د لوط (لوط ته)، او خاوندانو د ځنګله (شُعيب ته)، او قوم د تُبّع (خپل نبي ته).

تفسير: د دې قومونو قصې د «حجر»، «فرقان»، «دخان» او په نورو سورتونو کې تېرې شوي دي، هلته يې بيا ولولئ !.

كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيْدِ ﴿۱۴﴾

دوی ټولو نسبت د دروغو کړی وو پيغمبرانو خپلو ته؛ نو بيا حق او ثابت شو ځما عذاب پر دوی.

تفسير: د انبياوو د دروغجن شمېرلو (ګڼلو) لامله له هغو شيانو څخه چې دوی ويرول شوي وو؛ هغه ور د مخه راغلل، او په هم هغه عذابونو کې چې دوی ترې ويرول شوي وو؛ ولوېدل.

﴿أَفَعَيِينَا بِالْخَلْقِ الْأَوَّلِ ۚ بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ۝١٥﴾

آيا پس نو مونږ ستړي شوي وو په پيدايښت اول باندې (يعني نه يو ستړي شوي)، بلکه دوی په شک کې دي له جوړولو او ژوندي کولو نويو څخه.

تفسير: د دويم ځلي نوي ژوندون په نسبت هغوی ته خوشې او فضول يو شک پيدا شوی دی، هغه قادر مطلق چې دوی يې اول ځلي پيدا کړي دي، آيا دويم ځلي هغه ته د هغوی بيا پيدا کول کوم ګران کار دی؟ آيا دوی هسې ګمان کوي چې (معاذ الله) هغه به په اول ځلي د دې ګردې دنيا له پيدا کولو څخه ستړی شوی وي؟ د هغه مطلق قادر په نسبت داسې توهّمات غوره کول ډېر سخت جهالت او سپين ستر ګيتوب دی.

﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ ۖ﴾

او په تحقيق پيدا کړی دی مونږ جنس د انسان په داسې حال کې چې مونږ پوهيږو په هغه څيز چې وسوسه او خطره کوي په هغه سره زړه د ده له فکرونو عبثو او ناکارو سره.

تفسير: د انسانانو د هر قول او فعل څخه مونږ خبردار يو، تر دې چې له هغو پټو خبرو چې د وسوسې په ډول د هغو په زړه کې تيريږي؛ هغه هم مونږ ته معلوم دي: ﴿أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ﴾ (۲۹ جزء لمړی رکوع (۱۴) آيت).

﴿وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ ۝١٦﴾

حال دا چې مونږ ډېر نژدې يو ده ته (څمونږ ملائکې) له رګونو د ورمېږ د ده څخه.

تفسير: يعني څمونږ ملائکې انسان ته د ورمېږ د رګ (شارګ) څخه نژدې دي، چې الله تعالی ملائکو ته د دې قُدرت ور کړی دی.

﴿إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ عَنِ الْيَمِينِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيدٌ ۝١٧﴾

(او ياد کړه) کله چې اخلي دوه اخيستونکې پرښتې چې يوه له ښي طرف نه ناسته وي ليکلو د نېکۍ ته، او بله له کيڼ طرف نه ناسته وي ليکلو د بدۍ ته.

تفسير: دوه پرښتې د الله په حکم سره د هميش لپاره د هر سړي په کتنه کې دي، هر هغه لفظ چې د دوی له خولې څخه ووځي، يا هر کار چې دوی يې کوي؛ سمدلاسه يې ليکي، د نېکۍ لېکونکې ښي خوا ته او بدۍ ليکونکې کيڼې خوا ته ناستې او ټاکلې (مقرر کړې) شوي دي، څه زيادت او نقصان نه کوي، بلکه په ډېرې امانتدارۍ سره ليکنې کوي: ﴿وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِينَ﴾ (جزء عمّ، د الانفطار سورت).

﴿مَّا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ ۝١٨﴾

نه وايي دغه بنده هيڅ خبره مګر خو وي له ده څخه دوه ساتونکې، حاضر او تيار چې ژر يې وليکي.

تفسیر: دا دوه پرښتې ليکلو ته همېش تيارې وي، او هيڅکله نه ترې جُدا کيږي، هغه چې د ورځې له طرفه موظّفې دي؛ د نمازديگر په وخت کې عملونه د بندګانو ثبت ته رسوي، او هغه چې د شپې له طرفه موظفې دي؛ په وخت د صباح کې عملونه د بندګانو ربّ العالمين ته پورته کوي، رسول الله صلی الله عليه وسلم وايي چې: الله تعالی له دې ملائکو نه پوښتنه کوي چې: څما بندګان په څه حالت کې وو؟ هغوی ورته وايي چې: په سجده وو، نو رب العالمين ملائکو ته په هغوی باندې افتخار کوي، نو له همدې وجې نه بايد په دې دوو لمونځونو باندې ډېر خيال وشي !.

وَجَآءَتۡ سَكۡرَةُ ٱلۡمَوۡتِ بِٱلۡحَقِّۖ

او راغلې بې هوشي سختی د مرګ لپاره د دې چې په سترګو يې ووينې په حق سره.

تفسیر: له يوه لوري دفتر او دوسيه تياره شوې ده، او له بل لوري يې د مرګي په کنده باندې رسېدلی دی، مړ کېدونکی دی، او د ځنکدن په تکليفونو کې غوټې خوري، نو هلته دا ګردې خبرې ورته رښتيا ښکاري، چې الله تعالی او د هغه پيغمبرانو د هغه خبر ورکړی وو، او د مړي له مخې د هغه د سعادت او شقاوت پردې لرې کيږي، او د داسې پېښې پېښېدل يقيني او قطعي دي، ځکه چې د مطلق حکيم ډېر حکمتونه د ده سره اړې لري، نو په دغه وخت کې به وويلی شي دغه منکر انسان ته داسې چې:

ذَٰلِكَ مَا كُنتَ مِنۡهُ تَحِيدُ ﴿١٩﴾

دا مرګ هغه دی چې وې به ته له ده څخه په ځنګ کېدونکی، او نه وې پرې اقرار کوونکی.

تفسیر: سړی ډېر زيار کوي چې له مرګ څخه ځان وژغوري (وساتي)، او د هغه د بد خوند او وحشت څخه تل ځان وساتي، او د ښخوا او هغې خوا سر او پښې ووهي، خو سره له دې د مرګي شبېه چېرې وروسته کېدونکې ده، آخر هغه په سر باندې راتلونکې ده، او هيڅ يوه حيله او تدبير د مرګي مخه نشي نيولی.

وَنُفِخَ فِي ٱلصُّورِۚ ذَٰلِكَ يَوۡمُ ٱلۡوَعِيدِ ﴿٢٠﴾

او وبه پو کل شي په صور (شپېلۍ) کې، چې دا يوه ورځ ده د ويرولو (د کُفّارو په عذاب سره).

تفسیر: وړوکی قيامت خو د مرګ وخت دی، وروسته له دې لوی قيامت حاضر دی، فقط چې په صور او شپېلۍ کې وپو کلی شي، هغه ويروونکې ورځ موجوديږي، چې انبياوو او پيغمبرانو خلق ترېنه ويرولي وو.

وَجَآءَتۡ كُلُّ نَفۡسٖ مَّعَهَا سَآئِقٞ وَشَهِيدٞ ﴿٢١﴾

او راځي هر نفس په دې ورځ کې چې وي به له ده سره يو شړونکی (محشر ته)، او شاهدي ورکوونکی (پر اعمال يې لکه لاس، پښې او داسې نور).

تفسیر: خلق به په قيامت کې داسې حاضر کړل شي، چې يوه پرښته به يې ميدان ته د وړاندې کولو لپاره راکاږي، او بلې به يې عملنامه نيولې وي، چې د ده د ژوندانه ګرد احوال او خبرې په کې ليکلي شوي وي، ښايي چې دا به همغه دوه پرښتې وي چې ورته ﴿كِرَامٗا كَٰتِبِينَ﴾ وايي، او د هغو په نسبت يې فرمايلي دي: ﴿إِذۡ يَتَلَقَّى ٱلۡمُتَلَقِّيَانِ﴾ الآية ـ او ښايي چې کومه بل وي، والله أعلم، نو وبه ويلی شي ده ته د الله تعالی له جانبه داسې چې:

لَقَدْ كُنْتَ فِىْ غَفْلَةٍ مِّنْ هٰذَا فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَآءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيْدٌ ﴿۲۲﴾

په تحقيق سره (په دنيا کې) وې ته په غفلت بېخبرۍ له دې ورځې د عذاب څخه، نو بېرته مو کړه له تا څخه پرده د غفلت ستا، نو سترګې ستا نن ډېرې تېزې دي (چې پرې وينې خپل ګرد اعمال).

**تفسير:** په هغه وخت کې به وويلى شي دوى ته چې: تاسې د دنيا په خوندورو شيانو کې مشغول وئ، او له دې ورځې څخه بېخبر او بې پروا وئ، او ستاسې سترګې د شهواتو او غوښتنو تيارې او پردې پټې کړې وې، هغه ښوونې چې پيغمبرانو تاسې ته کولې؛ هغو ته مو فکر نه کاوه، نن هغه پرده ستاسې له سترګو څخه لرې کوو، او ستاسې ليدنه خورا زياتوو، تر څه ښه وګورې: آيا هغه خبرې چې تاسې ته کېدلې؛ صحيح وې او که غلطې؟ ثابته وه او ثابته شوه چې ټولې خبرې رښتيا وې.

وَقَالَ قَرِيْنُهٗ هٰذَا مَا لَدَىَّ عَتِيْدٌ ﴿۲۳﴾

او وبه وايي ملګرى د ده (پرښته) دا دى هغه شى چې ما سره حاضر دى (د دفاترو د اعمالو د ده).

**تفسير:** پرښتې به يې له اعمالنامو سره حاضرې وي، ځينې له (قرين) څخه شيطان مرادوي، يعنې شيطان به وايي: دا مجرم حاضر دى، چې ځما له خوا اغوا شوى وو، او هغه مې د دوزخ لپار تيار کړى دى، مطلب دا چې هغه اغوا ځما له لاسه شوې ده، خو په ما کې دومره زور او تسلّط چېرې وو، چې هغه مې په جبري ډول سره په شرارت کې اخته کړ، دى پخپل اختيار، اراده او واک ګمراه شوى دى.

اَلْقِيَا فِىْ جَهَنَّمَ كُلَّ كَفَّارٍ عَنِيْدٍ ﴿۲۴﴾ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ مُّرِيْبٍ ﴿۲۵﴾

(نو وبه ويل شي دوو پرښتو ته) وغورځوئ تاسې په دوزخ کې هر يو کافر عناد کوونکى. منع کوونکى د خير، تېرېدونکى له حدودو مشروعو، ظالم او شک کوونکى (په دين کې).

**تفسير:** د الله تعالى له درباره به دغه حکم دوو پرښتو ته وشي، چې داسې سړى دې په دوزخ کې واچول شي !.

اِلَّذِىْ جَعَلَ مَعَ اللّٰهِ اِلٰهًا اٰخَرَ فَاَلْقِيٰهُ فِى الْعَذَابِ الشَّدِيْدِ ﴿۲۶﴾

هغه (کافر) چې ګرځولى يې دى له الله تعالى سره بل معبود، نو وغورځوئ دى په عذاب سخت کې.

**تفسير:** داسې سړى په دوزخ کې د ډېر سخت عذاب مستحق دى، ځکه چې تر مشرکينو نه لوى ظالمان نور په دنيا کې نشته.

قَالَ قَرِيْنُهٗ رَبَّنَا مَآ اَطْغَيْتُهٗ وَلٰكِنْ كَانَ فِىْ ضَلٰلٍۭ بَعِيْدٍ ﴿۲۷﴾

وبه وايي ملګرى د ده يعنې شيطان: اى ربه ځمونږ ! نه وو ګمراه کړى ما دى (جبرًا)، ليکن وو دى پخپله په ګمراهۍ لرې کې له حقه ځنې.

**تفسير:** ځما زور پر ده باندې نه رسېده، لږ څه اشاره مې چې ورته وکړه؛ دغه کمبخت پخپله ګمراه شو، د نجات او فلاح له لارې څخه لرې ولوېد، شيطان په داسې ويناوو سره غواړي چې خپل جرم سپک ورښکاره کړي.

قَالَ لَا تَخْتَصِمُوْا لَدَيَّ وَقَدْ قَدَّمْتُ اِلَيْكُمْ بِالْوَعِيْدِ ﴿۲۸﴾

وبه فرمايي (الله قهرًا چې) جګړه مه کوئ تاسې دلته له ما څخه چې فائده نه کوي جګړې د تاسې په دې ځای کې، او په تحقيق رومبی لېږلي وو ما تاسې ته وېرول خپل په ژبو د انبياوو.

تفسير: تاسې چټې او اپلتې خبرې مه کوئ، په دنيا کې مې هر چا ته د ښو او بدو لارې ورښوولې وې، اوس هر يو ته د هغه له جُرم سره سمه جزاء ورکوله کيږي، هغه چې ګمراه شوی دی، او هغه چې له دوی څخه يې لاره ورکه کړې ده؛ دواړه به د خپلو جرمونو سزاوې ومومي.

مَا يُبَدَّلُ الْقَوْلُ لَدَيَّ وَمَآ اَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۲۹﴾

نه شي بدلېدلي هيڅ خبره په دې باره کې په نزد ځما، او نه يم زه ظلم کوونکی پر بندګانو چې بې له ګناه يې په عذاب کړم.

تفسير: ځمونږ له لوري به ظلم نه کيږي، هغه فيصله چې صادريږي؛ عين حکمت او انصاف به وي، «او خبره به نه بدليږي»، يعنې کافران به نه ښنلی کيږي، نو د دې لوی کافر شيطان ښنه به چېرې کيږي.

يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَاْتِ وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ ﴿۳۰﴾

(ياده کړه هغه ورځ) چې وايو مونږ دوزخ ته داسې: آيا ډک او موړ شوې ته له خلقو نه؟ او وبه وايي هغه: آيا نور هم څه زيات شته، بلکه شته يعنې زيات کړه !، زه لا ښه موړ شوی نه يم.

تفسير: د دوزخ وسعت او ارتوالی به له دومره خلقو څخه نه ډکيږي، او د قهر له شدّته به نور کافران او نافرمانان هم ورغواړي.

وَاُزْلِفَتِ الْجَنَّةُ لِلْمُتَّقِيْنَ غَيْرَ بَعِيْدٍ ﴿۳۱﴾

او رانژدې به کړ شي جنّت لپاره د وېريدونکيو پرهېزګارانو چې نه به وي لرې (له دوی نه).

تفسير: جنت به له دوی څخه لرې نه وي، دوی به له ډېر نژدې څخه د هغه تر او تازګي، ښايست او سينګار ويني.

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِكُلِّ اَوَّابٍ حَفِيْظٍ ﴿۳۲﴾ مَنْ خَشِيَ الرَّحْمٰنَ بِالْغَيْبِ وَجَآءَ بِقَلْبٍ مُّنِيْبٍ ﴿۳۳﴾ اِۨدْخُلُوْهَا بِسَلٰمٍ ط

فرمايي الله چې: دا هغه دی چې وعده به يې کېده له تاسې سره، لپاره د هر رجوع کوونکي الله لره، او د هر ساتونکي حدودو د هغه لره. هر هغه زړه چې وېريږي له عذابه د رحمان په غيب سره، او راتلونکی وي په زړه رجوع کوونکي سره الله ته؛ (نو وبه فرمايي الله:) ځئ ننوځئ په کې په سلامتيا سره.

تفسير: هغه کسان چې په دنيا کې يې الله تعالی يادوه، او له ګناهونو څخه يې ځانونه ژغورل، او د الله په لوري به يې رجوع کوله، او بې له ليدلو څخه د هغه له قهر او جلاله ويربدل، او په يوه پاک او صاف رجوع کوونکي زړه د الله په حضور کې حاضر شوی وو، د هغه جنت وعده له داسې سړيو سره کړې شوې وه، اوس يې وخت رارسېدلی دی، چې په سلامتيا او عافيت سره په کې ننوځئ، او پرښتې دوی ته سلام اچوي، او د پاک پروردګار سلام هم وررسوي.

ذٰلِكَ يَوْمُ الْخُلُوْدِ ﴿۳۴﴾

دا ورځ د ورننوتلو په جنت کې ورځ ده د همېشه توب په هغه کې.

**تفسير:** په حديث کې وايي: جنتيان چې جنّت ته ننوځي؛ ورته ويل کيږي: ننوځئ بيا مو نو مرګ نشته، دوزخيانو ته په وخت د ننوتلو کې دوزخ ته همداسې ويل کيږي، نو هغه ورځ هر چا ته هر څه چې وررسيږي؛ د تل لپاره وي.

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ فِيْهَا وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ ﴿۳۵﴾

وي به دغو (مؤمنانو) لره هغه چې غواړي دوی په دې جنّت کې، او له مونږ څخه يې زيادت هم شته په هغو باندې.

**تفسير:** هر شی چې وغواړي؛ هغه وررسيږي، برسېره په هغه داسې نعمتونه هم وررسيږي، چې د هغوی په خيال کې نه وي رسېدلي، لکه د الله تعالی لقاء او ليدنه، او ممکن دي له ﴿وَلَدَيْنَا مَزِيْدٌ﴾ څخه دا غرض وي چې له مونږ سره ډېر شيان دي، هر څومره چې د جنّتيانو له خوا وغوښت شي؛ هغه ګرد به ورکړل شي.

وَكَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنْ قَرْنٍ هُمْ اَشَدُّ مِنْهُمْ بَطْشًا فَنَقَّبُوْا فِى الْبِلَادِ هَلْ مِنْ مَّحِيْصٍ ﴿۳۶﴾

او ډېر مو هلاک کړي دي پخوا له دې څخه له اهل د زمانو پخوانيو نه چې هغوی ډېر سخت او قوي وو له دغو (کفارو د مکې) څخه له جهته د قوّته؛ نو ډېر ځايونه د پنا يې ولټول په ښارونو کې، چې ګوندې پيدا به کړي ځای د ساتنې له مرګه ځنې، خو پيدا يې نه کړ، آيا شته دوي ته خلاصيدل له هلاکه؟

**تفسير:** ړومبی د کفارو د اخروي تعذيب بيان وو، په منځ کې د هغوی په مقابل کې د اهل جنّت د تنعّم ذکر راغی، اوس بيا د کفارو د سزا ورکولو ذکر فرمايي، يعنې پخوا له آخرته په دنيا کې مونږ ډېر داسې شرير سرکښ او غاړه غړوونکي قومونه تباه او خراب کړي دي، چې په زور او قوّت کې له موجوده کافرانو څخه ډېر لوړ وو، او په ډېرو ملکونو کې ګرځېدلي وو، او راز راز تصرّفات يې په کې کړي وو، کله چې د الله تعالی عذاب ورسېد؛ نو د تښتېدلو او پټېدلو لپاره هغوی ته په ګرد جهان کې په هيڅ يو ځای کې داسې ځای نه پيدا کېده: ﴿اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِىْ بُرُوْجٍ مُّشَيَّدَةٍ﴾ الآية ـ (د النساء سورت (۱۱) رکوع (۷۸) آيت).

اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَذِكْرٰى لِمَنْ كَانَ لَهٗ قَلْبٌ اَوْ اَلْقَى السَّمْعَ وَهُوَ شَهِيْدٌ ﴿۳۷﴾

بېشکه په دغو (مذکوره وو شيانو) کې خامخا ذکر او پند دی هر هغه چا لره چې وي هغه لره زړه روغ او فکر کوونکی، يا کيږدي غوږ نصيحت ته په داسې حال کې چې دی حاضر متوجه وي په زړه سره.

**تفسير:** په دې عبرتناکو واقعاتو باندې له غور او فکر کولو څخه هم هغه خلق پند اخيستی شي چې د هغوی په سينه کې هسې پوهېدونکی زړه وي، چې يا پخپله په خبرې باندې پوهيږي، يا د نورو له پوهولو څخه پوهه ومومي، اوغوږ ورته ونيسي، څکه چې دا هم د پوهنې يوه درجه ده، چې سړی پخپله نه پوهيږي، خو د نورو له ويښولو څخه متنبه او هوښياريږي، او منفعت ترې اخلي، هغه چې نه پخپله پوهيږي، او نه د نورو پوهولو ته غوږ ږدي، او نه يې په زړه کې ځای ورکوي، نو له هسې سړي څخه لوټه او تيږه ښه ده.

وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ﴿٣٨﴾

او په تحقيق پيدا کړي دي مونږ اسمانونه او ځمکه او هغه نور مخلوقات چې په منځ د دغو (اسمانونو او ځمکه) کې دي په شپږو ورځو کې.

تفسير: د دې بيان پخوا له دې تېر شوی دی.

وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ ﴿٣٨﴾

او نه وه رسېدلې مونږ ته هيڅ ستوماني.

تفسير: کله چې دی د اول ځلي له پيدا کولو څخه نه دی ستړی شوی؛ نو د دويم ځلي په پيدا کولو کې به څرنګه ستړی کيږي؟ او تباه او برباد کول خو له جوړولو څخه ډېر اسان دي.

فَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ

نو صبر کوه (ای محمده !) پر هغه چې وايي يې دوی، او تسبيح ووايه پيوست له حمده د رب خپل.

تفسير: که دا خلق په داسې غټو خبرو باندې هم نه پوهيږي؛ نو تاسې مه خپه کېږئ !، بلکه پر داسې چټي خبرو باندې صبر وکړئ !، او دا حکم د جهاد د حکم نه مخکې وو، او د هغه الله تعالی په ياد کې د زړه له کومې مشغول اوسئ !، چې د ګردو اسمانونو او ځمکې پيدا کوونکی دی، او د هر شي په ودانولو او ورانولو باندې قدرت لري.

قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ وَقَبْلَ الْغُرُوبِ ﴿٣٩﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَسَبِّحْهُ

پخوا له راختلو د لمر يعنې لمونځ د سبا، او پخوا له لوېدلو د لمر څخه يعنې لمونځونه د ماسپښين او د مازديګر، او په ځنې برخې د شپې نه پس تسبيح وايه د دغه الله يعنې لمونځ د تهجّد او ماسختني وکړه.

تفسير: دا د الله تعالی د يادولو وختونه دي، په دې کې عبادتونه او دعاوې قبليږي، له ځينو روايتونو څخه ښکاريږي، چې ړومبی ځمونږ په پيغمبر صلی الله عليه وسلم باندې د دريو وختونو لمونځ فرض وو، سهار، مازديګر او تهجّد، لکه چې اوس هم دی دريو وختو ته يو خصوصي فضل او شرف حاصل دی، ښايي چې هر سړی په لمانځه، ذکر، دعاء، تلاوت يا نورو ښو کارونو باندې په دغو وختونو کې مشغول اوسي، او معمور يې ولري، په حديث کې راغلي دي: (عليكم بالغداة والروحة وشيء من الدّلجة) ځينې وايي چې: له قبل الطلوع څخه د سهار لمونځ او له قبل الغُروب څخه د ماسپښين او مازديګر لمونځونه او له (من الليل) څخه د ماښام او ماسختن لمونځونه مراد دي.

وَأَدْبَارَ السُّجُودِ ﴿٤٠﴾

او وروسته له سجدو د لمونځونو څخه هم تسبيح ووايه !

تفسير: وروسته له لمانځه څخه دې څه تسبيح او تهليل وکړ شي، چې هغه عبارت له سنتو لمونځونو او نوافلو څخه دي، او يا عبارت له هغو اذکارو څخه دي چې په احاديثو کې راغلي: لکه درې دېرش کرته سبحان الله، درې دېرش کرته الحمد لله، څلوردېرش کرت الله أکبر، او يا داسې نور اذکار او اوراد چې په نصوصو کې راغلي.

وَاسْتَمِعْ يَوْمَ يُنَادِ الْمُنَادِ مِن مَّكَانٍ قَرِيبٍ ﴿٤١﴾

او واوره غوږ کېږده (ای محمده !) هغه ورځ چې اواز وکړي اواز کوونکی له ځای نژدې نه.

تفسير: وايي چې د بيت المقدس پر تيږې باندې به صور او شپېلۍ پوكل كيږي، نو ځكه يې نژدې ويلي دي، يا يې دا مراد دی چې د هغه غږ به په هر ځای كې له ډېر نژدې ځخه اورېده كيږي، او ټول به يو شانې اوري، له صور څخه نور غږونه هم د الله تعالى له لوري اورول كيږي، چې ځينې له دې آيت څخه هم هغه غږونه مرادوي، چې په هغې ورځې كې پرته له صور څخه له ډېر نژدې څخه غوږونو ته رسيږي، خو ښكاره نفخ صور دی، والله أعلم.

يَوْمَ يَسْمَعُونَ الصَّيْحَةَ بِالْحَقِّ ذَٰلِكَ يَوْمُ الْخُرُوجِ ﴿٤٢﴾

هغه ورځ چې واوري (دغه خلق) سخته چيغه په حقه سره، دا (ورځ د اواز) ورځ د وتلو (له قبورو) ده.

تفسير: كله چې دويم ځلي صور او شپېلۍ پوكله كيږي، نو ځمكه بالكل سره بېرته كيږي، او ګرد مړي ترې ژوندي راوځي، او په ميدان دريږي.

إِنَّا نَحْنُ نُحْيِي وَنُمِيتُ وَإِلَيْنَا الْمَصِيرُ ﴿٤٣﴾

بېشكه همدا مونږ ژوندي كول كوو او مړه كول كوو، او شته خاص مونږ ته راګرځېدل (د ټولو امورو).

تفسير: په هر حال موت او حيات ګرد د الله تعالى په لاس كې دی، او د هر ډول (طريقه) ګرځېدلو پای (آخر) د الله تعالى په لوري دی، هيڅوك له دې څخه نه شي خلاصېدی.

يَوْمَ تَشَقَّقُ الْأَرْضُ عَنْهُمْ سِرَاعًا ذَٰلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ ﴿٤٤﴾

په هغه ورځ چې وچوي ځمكه له دوی څخه په چابكۍ سره، دغه (ژوندي كول) ټولول دي پر مونږ ډېر آسان.

تفسير: ځمكه به چوي، مړي به له هغې څخه راووځي، او د حشر د ميدان په لوري به سره په منډو غونډيږي، الله تعالى به ګرد ړومبي او وروستني مخلوقات سره يو ځای ټولوي، او داسې كول هغه ته كوم لوی كار نه دی.

نَحْنُ أَعْلَمُ بِمَا يَقُولُونَ وَمَا أَنتَ عَلَيْهِم بِجَبَّارٍ فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَن يَخَافُ وَعِيدِ ﴿٤٥﴾

مونږ ته ښه معلوم دي هغه څه چې وايي يې دوی، او نه يې ته په دوی باندې زور كوونكی (په راوړلو د ايمان)؛ نو پند وركوه په قرآن سره هغه چاته چې ويريږي له وعيدونو او ويرولو ځما په عذابونو د آخرت سره.

تفسير: هغه خلق چې له حشر څخه منكران دي، هغوی چټي اپلتې كوي، دوی پرېږدئ چې هسې چټي خبرې كوي، او د هغوی معامله مونږ ته راوسپارئ، مونږ ته دوی ګرد معلوم دي، او په هغو خبرو مونږ ښه پوهيږو چې دوی يې وايي، ستاسو دا كار نه دی چې په زور او زياتی سره په هر سړي باندې هره يوه خبره ومنئ، هو ! هغوی ته قرآنكريم واوروئ !، او مخصوصًا هغوی ته نصيحت او لار ښوونه وكړئ !، چې د الله تعالى څخه وويريږي، او په دې معاندينو پسې ډېره زياته هڅه مه كوئ !.

تمّت سورة (ق) بتوفيقه تعالى.

# سُورَةُ الذّٰرِيٰتِ

«د (الذّاريات) سورت مکي دی، (۶۰) آيتونه او درې رکوع لري، په تلاوت کې (۵۱) او په نزول کې (۶۷) سورت دی، وروسته د (الأحقاف) له سورت نه نازل شوی دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالذّٰرِيٰتِ ذَرْوًا ﴿۱﴾ فَالْحٰمِلٰتِ وِقْرًا ﴿۲﴾ فَالْجٰرِيٰتِ يُسْرًا ﴿۳﴾ فَالْمُقَسِّمٰتِ اَمْرًا ﴿۴﴾

قسم دی په هغو بادونو باندې چې تيتوي (الوځوي) خاورې او نور شيان په الوتلو خپلو سره. پس قسم دی په ورېځو پورته کوونکيو د اوبو درنو سره. پس قسم دی په کشتيو تلونکيو په نرمۍ سره په سر د اوبو. پس قسم دی په (ملائکو) قسمت کوونکو د کارونو لويو په حکم د الله سره «لکه ارزاق باران او داسې نور».

تفسير: ړومبی ډېر سخت بادونه او سيلۍ الوځي، چې د هغو له دوړو اوغبار څخه ورېځې پورته کيږي، بيا له هغو څخه اوبه جوړيږي، او هغه پيټي پورته ګرځي، بيا د وربدلو په وخت کې سپکه هوا چليږي، بيا د الله تعالی له حکم سره سم د هرې سيمې هومره ورښ چې په برخه يې وي؛ هغه ورويشل کيږي، پر دې هواو باندې الله تعالی قسم خوري، ځينې عالمان له (ذاريات) څخه هواوې، له (حاملات) څخه ورېځې، او له (جاريات) څخه ستوري، او له (مقسمات) څخه پرښتې مرادوي، ګواکې د مقسم په ترتيب له ښکته والي څخه د پورته په لوري شوی دی، له عليّ (رضي الله تعالی عنه) او نورو څخه روايت دی چې (ذاريات) هواوې، (حاملات) ورېځې، (جاريات) بېړۍ، او (مقسمات) هغه پرښتې دي چې د الله تعالی په حکم خواړه او نور شيان تقسيموي، ځواب د قسم دا دی چې:

اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَصَادِقٌ ﴿۵﴾ وَّاِنَّ الدِّيْنَ لَوَاقِعٌ ﴿۶﴾

بېشکه هغه چې له تاسو سره يې وعده کاوه شي چې هغه عبارت دی له ژوندي کولو پس له مرګه ځنې؛ خامخا يوه وعده رښتيا ده. او بېشکه چې جزاء د عمل خامخا واقع کېدونکې او راتلونکې ده (نو ځانونه ورته ښه تيار کړئ !).

تفسير: دا د هواوو او ورښو او نورو شيانو نظام ښه شاهد او ښوونکی دی، چې د آخرت وعده رښتيا ده، او د دنيا د اموراتو فيصله کول په عدل او انصاف سره هم ضروري دي، کله چې په نړۍ کې يو باد، ورښ، هوا هم بې له نتيجې نه ښوري، نو آيا دا دومره لويه کارخانه به څرنګه بې له کومې نتيجې پخپل سر ګرځي؟ خامخا دوی لره به هم کومه عظيم الشأنه نتيجه وي، چې هغه ته مونږ آخرت وايو.

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْحُبُكِ ﴿۷﴾

او (قسم دی) په اسمان خاوند د لارو، خلقي وو، مزينو.

تفسير: په صاف، مضبوط او ډېر ښه رونق لرونکي اسمان باندې قسم دی، چې پر هغه باندې د ستوريو جال لوېدلی راښکاري، او په هغه کې د ستوريو او پرښتو لارې شته، جواب د قسم دا دی چې:

إِنَّكُمْ لَفِي قَوْلٍ مُّخْتَلِفٍ ۝٨ يُؤْفَكُ عَنْهُ مَنْ أُفِكَ ۝٩

بېشکه تاسې يئ ای مشرکانو ! خامخا په يوه خبره مختلفه ګډه وډه کې. ګرځول کاوه شي له دغه (نبي، قرآن او ايمان څنې په هغوی سره) هغه څوک چې ګرځولی شوی دی له هدايته په علم د الله کې.

**تفسير:** د قيامت او د آخرت خبرې هرومرو ستاسو د جګړو مورد ګرځېدلي دي، دا هغه سړي مني، چې د رُبوبيت له دربار سره څه تعلّق ولري، هغه چې له دې درباره رټلی او شړلی وي؛ د خير او د سعادت له لارې څخه ګرځېدلی وي، نو هغه د دې شيانو له تسليم او منلو او قبلولو څخه تل بې برخې پاتې کيږي، که دوی يواځې د اسمان په نظم او نسق باندې فکر وچلوي، او غور وکړي؛ نو يقين يې راځي چې په هسې خبرو کې جګړې کول ناپوهي او حماقت دی.

قُتِلَ الْخَرَّاصُونَ ۝١٠

لعنت کړی شوی دی پر دروغ ويونکيو، اټکل کوونکيو باندې.

**تفسير:** په دوی څکه لعنت شوی دی، چې دوی د دين په خبرو کې اټکلونه وهي، او پخپل ګمان او اټکل سره د قطعيّاتو ترديد کوي.

الَّذِينَ هُمْ فِي غَمْرَةٍ سَاهُونَ ۝١١

هغه کسان چې دوی په نهايت غفلت کې سهو کوونکي غافل او بېخبره دي (له قيامت نه).

**تفسير:** د دنيا د چړچو او د مزو لامله دوی له الله تعالى څخه او آخرت نه بالکل غافل شوي دي.

يَسْأَلُونَ أَيَّانَ يَوْمُ الدِّينِ ۝١٢

سوال کوي منکران (تمسخرًا له محمد نه) چې کله به وي ورځ د انصاف (او د جزاء).

تفسير: د انکار او خندا په ډول پوښتني کوي: ښه ! خانه ! هغه د عدل او د انصاف ورځ کله راځي؟ او دومره ولې وځنډېده؟ نو فرمايي الله أکرم شأنه وأعظم برهانُه په ځواب د دوی کې چې: واقع به شي دا جزاء.

يَوْمَ هُمْ عَلَى النَّارِ يُفْتَنُونَ ۝١٣ ذُوقُوا فِتْنَتَكُمْ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تَسْتَعْجِلُونَ ۝١٤

هغه ورځ چې دوی په اور باندې معذّب شي. (ورته وبه ويل شي): وڅکئ تاسې (خوند د) عذاب ستاسې، دا دی هغه (عذاب) چې وئ تاسې چې په جلتی سره مو غوښت دغه عذاب په دنيا کې.

تفسير: دا د الله تعالى له لوري هغوی ته جواب ورکړی شوی دی، چې لږ صبر وکړئ !، هغه ورځ راتلونکې ده، کله چې تاسې په اور کې سره سم او کاږه واړه ولوېږئ، او ښه په کې وسوځئ !، نو هلته به تاسې ته وويل شي: واخلئ وڅکئ دا مو د شرارت او استهزاء مزه او خوند او دا ده هغه ورځ چې تاسې ژر غوښتله درغله.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ ۝١٥ آخِذِينَ مَا آتَاهُمْ رَبُّهُمْ

بېشکه ويريدونکي له الله او ځان ساتونکي له معاصيو به په جنت کې وي، او په چينو کې به وي، يعنې ښنونکي د اوبو د دې چينو به وي. اخيستونکي به وي هغو نعمتونو لره چې ورکړی وي دوی ته رب د دوی.

تفسیر: په ډېره خوښی هغه نعمتونه قبلوي چې الله تعالی دوی ته وربښلي، چې یو له هغې څخه انواع د چینو دي: لکه سلسبیل: ﴿عَيْنًا فِيهَا تُسَمَّىٰ سَلْسَبِيلًا﴾ «الدهر»، تسنیم: ﴿وَمِزَاجُهُ مِن تَسْنِيمٍ * عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ﴾ «المطففین»، جاریة: ﴿فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ﴾ «الغاشیة».

﴿إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُحْسِنِينَ ﴿١٦﴾﴾

بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه یعنې په دنیا کې محسنان او نیکي کوونکي.

تفسیر: له دنیا څخه سره له ډېرو ښېګڼو (فائدو) راغلي وو، نن د هغو ښېګڼو مېوه مومي، وروسته له دې د ښېګڼو لړ څه تفصیل هم راځي.

﴿كَانُوا قَلِيلًا مِّنَ اللَّيْلِ مَا يَهْجَعُونَ ﴿١٧﴾ وَبِالْأَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُونَ ﴿١٨﴾﴾

وو به دوی (په دغه وصف) چې لږ برخه د شپې کې به اوده کېدل، او په اکثره د شپې کې به یې عبادت کاوه. او په وخت د چرګ بانګ (له سبا ختو نه مخکې) کې دوی مغفرت غوښت له الله نه د ګناهونو خپلو.

تفسیر: د شپې زیاته برخه د الله تعالی په عبادت کې تېروي، او د چرګ بانګ (له سبا ختو څخه مخکې) په وخت کې کله چې شپه پای (آخر) ته ورسېږي؛ له الله تعالی څخه د خپلو تقصیراتو بښنه غواړي.

﴿وَفِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ لِّلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ ﴿١٩﴾﴾

او په مالونو د دوی کې حق او برخه وه سوالګرو لره، او صبر کوونکو لره (یعنې مسکین سوال نه کوونکي لره).

تفسیر: محروم هغه اړ او محتاج دی، چې له هیچا څخه هیڅ شی نه غواړي، مطلب یې دا دی چې دوی برسېره پر «زکات» له خپلو مالونو او شتو څخه پخپلې خوښې سره سائلانو او محتاجانو ته برخې ټاکي، چې د التزام لامله ګواکې حق ورته وایه شي، او اغنیاء باید د داسې محتاجانو د حال نه خبر وي، چې دوی له شرم او غیرت نه له چا څخه څه نه غواړي.

﴿وَفِي الْأَرْضِ آيَاتٌ لِّلْمُوقِنِينَ ﴿٢٠﴾ وَفِي أَنفُسِكُمْ ۚ أَفَلَا تُبْصِرُونَ ﴿٢١﴾﴾

او په ځمکې کې علامې او نښې دي د قدرت د الله تعالی یقین لرونکو لره. په نفسونو او ځانونو ستاسې کې هم علامې د عبرت دي، آیا نو تاسې یې نه وینئ، چې ترې پند واخلئ.

تفسیر: له دغو نښو د قدرتونو د الله تعالی څخه چې په آفاقي او انفسي، یعنې په ځان او جهان کې شته، که سړی پخپل ځان یا د ځمکې د مخې د موجوداتو په احوالو باندې فکر او غور وکړي؛ نو دا تفکر او تعمّق هر انسان په دې متیقن کوي چې د هرو نېکو او بدو جزاء په هر ډول چې وي، ضرور رسېدونکې ده.

﴿وَفِي السَّمَاءِ رِزْقُكُمْ وَمَا تُوعَدُونَ ﴿٢٢﴾﴾

او په اسمان کې دی (سبب د) رزق ستاسې چې (باران دی)، او هغه چې له تاسو سره یې وعده کړې شوې ده (د ثواب او عقاب).

تفسیر: په سائلانو او محتاجانو باندې له لګولو څخه مه ویرېږئ، په دې معنا چې که مونږ خپل مال، اقرباء او فقیرانو ته ورکړو؛ نو له کومه به یې بیا وخورو، او مه په لګولو سره په مساکینو باندې څه منّت او احسان ږدي، ځکه چې مونږ ستاسې ګردو روزي، اجر او ثواب سم له کړې شوې وعدې سره درکوو، او د هر یوه روزي رسېدونکې ده، هیڅوک یې مخه نشي نیولی، او لګونکي لره به ډېر احترام اجر او ثواب نور هم وررسیږي.

فَوَرَبِّ السَّمَآءِ وَالْأَرْضِ إِنَّهُۥ لَحَقٌّ مِّثْلَ مَآ أَنَّكُمْ تَنطِقُونَ ﴿۲۳﴾

نو قسم دی وي ځما په رب د اسمان او ځمکې باندې، بېشکه دا خبره چې وعده یې کړی شوې ده؛ خامخا حقه او رښتیا ده، په مثل د هغې حقیقت او واقعیت چې تاسو پرې خبرې کوئ.

تفسیر: هسې چې ستاسې په وینا کې څه شک نشته، هم هغسې په دې خبرې کې هم څه شُبهه نشته، په یقین سره دا ورځ رسېدونکې ده، او د قیامت لویه ورځ درېدونکې ده، آخرت راتلونکی دی، او د الله تعالی ګردې وعدې پوره کېدونکې دي.

هَلْ أَتَىٰكَ حَدِيثُ ضَيْفِ إِبْرَٰهِيمَ ٱلْمُكْرَمِينَ ﴿۲۴﴾

آیا رسېدلې او راغلې ده تاته (ای محمّده) خبر د مېلمنو د ابراهیم چې مکرمان او عزتمندان وو (په نزد د الله).

تفسیر: دا مېلمانه هغه پرښتې وې چې په اوله کې ابراهیم په هغوی باندې د بني آدمانو ګمان کړی وو.

إِذْ دَخَلُوا۟ عَلَيْهِ فَقَالُوا۟ سَلَـٰمًا ۖ قَالَ سَلَـٰمٌ قَوْمٌ مُّنكَرُونَ ﴿۲۵﴾

کله چې ننوتلې دغه (پرښتې) پر دغه (ابراهیم)؛ نو وی ویل (سلام کوو مونږ پر تا) په سلام کولو سره، وویل (ورته ابراهیم چې) سلام دې وي پر تاسو (او په زړه کې یې دغه تېره شوه چې دوی یو) قوم ناآشنا دي.

تفسیر: د سلام ځواب یې په سلام سره ورکړ، او پخپلو زړونو یا په خپلو منځونو کې یې سره وویل: چې دوی خو اوپره او ناپېژندلي سړي راښکاري.

فَرَاغَ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ فَجَآءَ بِعِجْلٍ سَمِينٍ ﴿۲۶﴾ فَقَرَّبَهُۥٓ إِلَيْهِمْ قَالَ أَلَا تَأْكُلُونَ ﴿۲۷﴾

پس ورغی (ابراهیم) کور خپل ته نو رایې وړ یو خوسی (سخی) تیار وریت کړی؟ نو ورنژدې یې کړ هغوی ته ویې ویل: ولې نه خورئ (یعنې وخورئ ترې).

تفسیر: په ډېر اهتمام سره یې په مېلمستیا لاس پورې کړ، او په ډېر تهذیب او خوږه ژبه یې دوی ته وفرمایل: ګرانو مېلمنو! ولې تاسو ډوډۍ نه خورئ؟»، کله چې هغوی پرښتې وې، او خواړه یې نه وو پکار؛ نو دوی ورته وویل چې: نه یې خورو.

فَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً ۖ قَالُوا۟ لَا تَخَفْ ۖ وَبَشَّرُوهُ بِغُلَـٰمٍ عَلِيمٍ ﴿۲۸﴾

پس پټه کړه (ابراهیم) په زړه کې له دوی نه وېره. ورته وویل دوی: مه ویرېږه (مونږ لېږلي شوي د رب ستا یو)، او زېری یې ورکړ ده ته په یوه هلک ښه عالم هوښیار سره.

**تفسیر:** دلته ابراهیم علیه السلام وپوهېده چې دوی بې آدمان نه دي، بلکه ملائکې دي، دا قصه پخوا له دې څخه په تفصیل سره د (هود) په سورت او د (حجر) په سورت کې تېره شوې ده، هلته دې وکتله شي.

فَأَقْبَلَتِ امْرَأَتُهُ فِي صَرَّةٍ فَصَكَّتْ وَجْهَهَا وَقَالَتْ عَجُوزٌ عَقِيمٌ ﴿٢٩﴾

پس مخ یې وروارړاو ښځې د ده په غږ د حیرانتیا سره؛ نو ویې واهه مخ خپل (په څپېړو)، وویل دې چې: زړه بوډۍ یمه شنډه (نو څرنګه به وځېږوم زه ځوی؟).

**تفسیر:** بي بي ساره رضي الله تعالی عنها چې یوه ګوټ کې ولاړه وه، د هلک د ځېږېدلو د زیري له اورېدلو څخه په چغو سر شوه، او بلې خوا ته متوجّه شوه، او له ډېره تعجّبه یې په څپېړو خپل مخ ووهه، او ویې ویل: «دا څرنګه د منلو وړ خبره ده، چې یوه هسې زړه بوډۍ او شنډه ښځه لنګه شي، چې په ځوانۍ کې یې اولاد نه دی شوی، او اوس چې ډېره زړه او کړوپه شوې ده؛ د هلک مور شي؟».

قَالُوا كَذَٰلِكِ قَالَ رَبُّكِ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْحَكِيمُ الْعَلِيمُ ﴿٣٠﴾

وویل دغو (ملائکو) همداسې (لکه چې بشارت مو درکړ) ویلي دي رب ستا، بېشکه هغه (الله) ښه حکمت والا ښه خبردار دی.

**تفسیر:** مونږ دا خبره له ځانه نه وایو، بلکه ستاسې پروردګار همداسې فرمایلي دي، او هم هغه پاک الله ته دغه ښه معلوم دي چې چا ته څه شی؟ او په کوم وخت کې ورکړ شي؟، او بیا تاسې سره له دې چې د نبوّت له کورنۍ څخه یئ؛ نو ولې په دې زیري باندې تعجّب کوئ؟.

**تنبیه:** له ګردو آیتونو څخه دا ښکاري چې دا هلک اسحاق علیه السلام دی، چې د هغه زېرې مور او پلار دواړو ته ورکړی شوی دی.

قَالَ فَمَا خَطْبُكُمْ أَيُّهَا الْمُرْسَلُونَ ﴿٣١﴾

وویل (ابراهیم) نو څه کار (شان) دی ستاسې ای مرسلانو؟ (رالېږلیو شویو د الله له جانبه).

**تفسیر:** یعنې ابراهیم علیه السلام له پرښتو څخه پوښتنه وکړه چې آخر تاسې د څه لپاره راغلي یئ؟ ښایي چې له قرینې څخه پوهیدلي وي چې دوی د کوم ضروري او اهمّ مقصد لپاره راغلي دي.

قَالُوا إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمٍ مُجْرِمِينَ ﴿٣٢﴾ لِنُرْسِلَ عَلَيْهِمْ حِجَارَةً مِنْ طِينٍ ﴿٣٣﴾

وویل دوی: بېشکه مونږ چې یو رالېږلي شوي یو طرف د یوه قوم ګنهګار (کافر) ته. لپاره د دې چې ولېږو پر هغوی باندې تیږي (ګټې) له ختو (پخو شوو په اور کې لکه پخې خښتې).

**تفسیر:** یعنې د لوط علیه السلام د قوم د سزا ورکولو لپاره ورلېږلي شوي دي، تر څو یې د کنکرو د ډبرو په ورولو سره ووژنو.

مُسَوَّمَةً عِنْدَ رَبِّكَ لِلْمُسْرِفِينَ ﴿٣٤﴾

نښان داره کړی شوې (په نامه د هغه چا چې پرې ویشتل کیږي) په نزد د رب ستا لپاره د مسرفانو له حده تېرېدونکو (په کفر او فجور کې، لپاره د هلاک کولو).

**تفسير:** يعني د الله تعالی له خوا په هغه باندې نښې لګولی شوي دي (پر هرې ګټې باندې يې د هغه چا نوم ليکلي وو چې پرې ويشتلی کېده او هلاکېده)، دا د عذاب کاڼي يواځې پر هغوی باندې لګېږي، چې د عقل، دين او د فطرت له حدوده وتلي دي.

فَأَخْرَجْنَا مَنْ كَانَ فِيهَا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ۝٣٥ فَمَا وَجَدْنَا فِيهَا غَيْرَ بَيْتٍ مِّنَ الْمُسْلِمِينَ ۝٣٦

بيا راوويستل مونږ هغه څوک چې وو په دې کليو کې له ايمان لرونکو څخه. پس بيا ونه مونده مونږ په دغو کليو کې پرته له يوه کوره د مسلمانانو (د لوط) او کورنۍ د ده.

**تفسير:** يعني په هغه کلي کې يواځې لوط عليه السلام کورنۍ د مسلمانانو يو کور وو، چې مونږ هغه له عذابه وژغوره (وساته)، او ټول هستېدونکي يې روغ رمټ پاتې شول، او نور ټول سره هلاک او فناء شول.

وَتَرَكْنَا فِيهَا آيَةً لِّلَّذِينَ يَخَافُونَ الْعَذَابَ الْأَلِيمَ ۝٣٧

او پرېښوده مونږ په (هلاکت) د دغو (کليو) کې يوه نښه (لويه د عبرت د هلاکت) لپاره د هغو کسانو چې ويرېږي له عذاب دردناک څخه چې له بدو څخه ځان وژغوري (وساتي).

**تفسير:** يعني تر اوسه هلته د تباهۍ علائم او نښې شته، او د دوی دغه ويروونکي وژل ويريدونکيو لره لوی عبرت دی، او په دې قصې کې د عبرت او نصيحت ښه پندونه ليدل کيږي.

وَفِي مُوسَىٰ إِذْ أَرْسَلْنَاهُ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ۝٣٨ فَتَوَلَّىٰ بِرُكْنِهِ وَقَالَ سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ۝٣٩

او (پرېښې دي مونږ ويريدونکيو ته علامې د قدرت) په (قصې د) موسی کې کله چې ور ومولېږه دغه (موسی) طرف د فرعون ته په برهان واضح دليل ښکاره سره (يعني سره له معجزې او براهين).
بيا نو مخ واړاوه (فرعون له ايمان راوړو) سره له قوّت زور او لاولښکر خپل، او وويل (فرعون چې دغه) موسی کوډګر دی يا لېونی دی.

**تفسير:** يعني فرعون پخپل زور او قوّت باندې مغرور شوی، د حق له لارې څخه يې مخ واړاوه، او د دولت ارکان او ټبر يې هم له خپل ځان سره يو ځای ډوب کړل، فرعون به ويل چې: «موسی يا يو ګړندی کوډګر دی، يا لېونی دی، او له دغو دوو خبرو څخه خالي نه دی».

فَأَخَذْنَاهُ وَجُنُودَهُ فَنَبَذْنَاهُمْ فِي الْيَمِّ وَهُوَ مُلِيمٌ ۝٤٠

نو ونيوه مونږ دغه (فرعون) او لښکر د ده، نو وغورځول مونږ دوی په سيند کې (نو غرق شول)، او هغه ملامته کړی شوی وو.

**تفسير:** يعني مونږ په هغوی باندې څه زياتی نه دی کړی، هغوی پخپله ګرم او ملزم دي، چې ولې يې کفر او غاړه غړول، او سرکشي غوره کوله، او سره له پوهولو هم ونه پوهېدل، آخر هغه چې کړلي يې وو؛ ويې رېبل.

وَفِي عَادٍ إِذْ أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمُ الرِّيحَ الْعَقِيمَ ۝٤١ مَا تَذَرُ مِن شَيْءٍ أَتَتْ عَلَيْهِ إِلَّا جَعَلَتْهُ كَالرَّمِيمِ ۝٤٢

او (پرېښې دي مونږ علامې د قدرت) په (قصې د) عاد کې کله چې ومولېږه پر دوی باندې باد شنډ. نه به پرېښوده (دغه باد) هيڅ شی (له نفس او مال) چې وابه لوت په هغه باندې، مګر خو وبه يې ګرځاوه لکه وچ زوړ رژېدلي (وانښه ټوټې ټوټې).

**تفسير:** يعنې د عذاب هغه سخته سيلۍ راوالوته، چې له سېلمې له خير او بركته تشه وه، او د مجرمانو سټه يې وويسته، او په هر شي باندې چې الوته؛ د هغه دوړې به يې ايستلې.

وَفِي ثَمُودَ إِذْ قِيلَ لَهُمْ تَمَتَّعُوا حَتَّىٰ حِينٍ ﴿٤٣﴾

او (پرېښې دي مونږ علامې د قدرت) په (قصې د) ثمود كې كله چې وويل شو دوى ته: نفع واخلئ تر يوه وخته (د راتللو د عذاب) پورې.

**تفسير:** يعنې صالح عليه السلام ثموديانو ته وفرمايل: «ښه ده، څو ورځې نور هم د دنيا مزې وڅكئ !، او د دې ځاى سامان درغونډ كړئ !، په پاى (آخر) كې به د الله تعالى په عذاب كې اخته شئ».

فَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ وَهُمْ يَنظُرُونَ ﴿٤٤﴾ فَمَا اسْتَطَاعُوا مِن قِيَامٍ وَمَا كَانُوا مُنتَصِرِينَ ﴿٤٥﴾

نو سر يې وغړاوه له امره حكمه د رب خپل؛ نو ونيول دوى ټكې (د تندر عذاب هلاك كوونكي)، او دوى به (ورته) كتل. نو بيا نه توانېدل دوى چې پورته شي (وتښتي له عذاب د الله څخه)، او نه وو دوى بدل اخيستونكي (له مونږه، مقابله كوونكي له عذاب الله سره).

**تفسير:** يعنې د دوى شرارت ورځ په ورځ پسې زياتېده، آخر د الله تعالى عذاب راغى، يوه سخته ټكه (تندر) ولوېده، او په يوې كتنې هغوى ټول يخ پخ شول، د دوى د يوه له لاسه دومره ونه شو چې له سرګردانۍ څخه وروسته له خپل ځاى څخه وخوځيږي، نو دوى به څرنګه انتقام او بدل اخلي؟ او څه ډول به نور خپلو مرستو (مدد) ته وغوښتى شي؟.

وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا قَوْمًا فَاسِقِينَ ﴿٤٦﴾

او (هلاك كړى وو مونږ) قوم د نوح پخوا له دې (اهلاك د دې قومونو)، بېشكه دوى وو قوم فاسقان وتونكي له فرمان.

**تفسير:** يعنې له دې قوم څخه پخوا د نوح عليه السلام قوم د خپل بغاوت او سركښۍ په سبب تباه شوى دى، ځكه چې هغوى په نافرمانۍ كې له حده تېرى كړى وو.

وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا بِأَيْدٍ وَإِنَّا لَمُوسِعُونَ ﴿٤٧﴾

او اسمان موجود كړى دى مونږ په خپل قدرت سره، او بېشكه مونږ خامخا پراخوونكي يو (او هر شى مو له واك (اختيار) او قدرته پوره دى).

**تفسير:** يعنې الله تعالى اسمان غوندې يو لوى څيز پخپل قدرت او قوّت سره پيدا كړي دي، او هغه ته له اسمان او له ځمكې څخه د نورو لويو شيانو پيدا كول هيڅ مشكل نه دي.

وَالْأَرْضَ فَرَشْنَاهَا فَنِعْمَ الْمَاهِدُونَ ﴿٤٨﴾

او ځمكه غوړولې ده مونږ، نو ښه غوړوونكي يو مونږ.

تفسیر: یعنې اسمان او ځمکه ټول د الله تعالی پیدا کړي اجسام دي، او هغه ټول د الله تعالی په واک او قبضه کې دي، نو د دې مجرم به چېرې وتښتېدی شي؟ او کوم ځای ته به پناه یوسي؟.

وَمِن كُلِّ شَيْءٍ خَلَقْنَا زَوْجَيْنِ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴿٤٩﴾

او له هر څیز څخه پیدا کړي دي مونږ جوړې دوه قسمه (نر ـ ښځه) لپاره د دې چې تاسې پند واخلئ (پوه شئ چې فردیت او وحدانیت یواځې د الله صفت دی).

تفسیر: یعنې پیدا کړي دي مونږ نر او ښځه لکه چې «ابن زید» ویلي دي، او نن نوي حکماء هم په هغه باندې اعتراف کوي، چې په هرې نوعې کې د نر او ښځې تقسیم شته، یا له (زوجین) څخه متقابل او متضاد شیان مراد دي، لکه شپه ورځ، اسمان ځمکه، رڼا تیاره، تور سپین، روغتیا ناروغتیا، ایمان کفر، او د دوی په شان نور، پس ووایه ای محمده ! دوی ته داسې چې:

فَفِرُّوا إِلَى اللَّهِ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥٠﴾ وَلَا تَجْعَلُوا مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ إِنِّي لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٥١﴾

او وتښتئ (رجوع وکړئ) په طرف د الله (په طاعت سره)، بېشکه زه تاسې ته له طرفه د هغه (الله) ویروونکی ښکاره یم. او مه ګرځوئ مه شریکوئ تاسې له الله سره بـل څوک معبود، بېشکه زه تاسې ته له طرفه د هغه (الله) ویروونکی ښکاره یم.

تفسیر: یعنې کله چې اسمان او ځمکه او ګرد کائنات د واحد الله تعالی پیدا کړي شیان دي، او د هغه تر واک او حکومت لاندې دي، نو بنده لره ښایي چې له هرې خوا څخه لرې شي !، او د هغه لوري ته په منډه وروځغلي !.

كَذَٰلِكَ مَا أَتَى الَّذِينَ مِن قَبْلِهِم مِّن رَّسُولٍ إِلَّا قَالُوا سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ﴿٥٢﴾

همداسې (لکه چې وایي تاته قوم د تا ساحر، مجنون) نه دی راغلی هغو کسانو ته پخوا له دوی څخه هیڅ رسول؛ مګر خو ویل هغوی چې: (دی) ساحر کوډګر دی، یا مجنون لېونی دی.

تفسیر: یعنې که داسې ښکاره تنبیه او انذار ته دا منکران غوږ نه ږدي؛ نو مه غمجن کېږئ !، له دوی څخه پخوا هغو کافرو قومونو ته چې پیغمبران ورتلل؛ هغوی ته به یې همداسې کوډګر او لېونی ویل، او د هغوی په پندونو او نصیحتونو باندې به یې خندل، او ملنډې به یې پرې وهلې.

أَتَوَاصَوْا بِهِ ۚ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿٥٣﴾

آیا وصیت کړی دی دوی یو بل ته په دې خبرې سره؟ (نه) بلکه همدوی دي قوم سرکښان.

تفسیر: یعنې د هرې زمانې کافران په دې خبرې باندې همداسې متّفق اللّفظ وو، لکه چې دوی یو بل ته وصیت کړی وي، او بیا مړه شوي وي، چې د الله هر یو رسول چې راشي؛ ښایي چې هغه ته ساحر یا مجنون ووایي، او په واقع کې به یې کله وصیت کاوه؟ هو !د شرارت په عُنصر کې ګرد سره شریکان او مل دي، او د همدې اشراک لامله پخوانیو شریرانو هم هغسې خبرې کړي دي لکه چې اوسني شریران یې هم کوي.

فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَا أَنتَ بِمَلُومٍ ﴿٥٤﴾ وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٥٥﴾

پس مخ وګرځوه ته له دوی څخه، پس نه یې ته هیڅ ملامت کړی شوی (ځکه چې پوره تبلیغ دې کړی دی)، او تل نصیحت کوه، پس بېشکه چې ذکر پند ګټه نفعه رسوي مؤمنانو ته.

تفسیر: یعنې تاسې د تبلیغ او دعوت فرض هسې چې ښایي؛ اداء کړي دي، اوس د زیات غمجن کېدلو او فکر وهلو ضرورت نشته، په نه منلو باندې کوم الزام چې راتلونکی دی؛ هغه پر هم دغو نه منونکیو او معاندینو باندې دی، هو ! پوهول ستاسې کار دی، نو دا د پوهولو سلسله جاري ولرئ !، د هر چا په قسمت او برخه چې ایمان وي؛ هغه ته دا پوهول نافع او ګټور واقع کیږي.

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿۵۶﴾

او نه دي پیدا کړي ما پیریان او انسانان مګر لپاره د دې چې عبادت وکړي دوی ځما.

تفسیر: شیخُ الهند (رحمه الله) د دې آیت ترجمه داسې کوي: او هر څه چې مو پیدا کړي دي، جن او آدمي خو لپاره د بندګی خپلې، یعنې د هغو له پیدا کولو څخه شرعًا بندګي مطلوبه ده، نو ځکه خلقتًا په دوی کې داسې استعداد ایښود شوی دی، چې که وغواړي؛ پخپل اختیار د بندګی په لاره کې تلی شي.

مَا أُرِيدُ مِنْهُمْ مِنْ رِزْقٍ وَمَا أُرِيدُ أَنْ يُطْعِمُونِ ﴿۵۷﴾ إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ ﴿۵۸﴾

او اراده نه لرم زه له دوی څخه د هیڅ رزق روزي (ما لره او ځانونو خپلو ته)، او اراده نه لرم زه د دې چې طعام راکړي ما لره دوی (او ځانونو خپلو ته). بېشکه الله همدی ښه رزق روزي ورکوونکی دی، څښتن (خاوند) د قوّت محکم مضبوط دی.

تفسیر: یعنې د دوی له بندګی څخه ماته هیڅ ګټه نه رارسیږي، بلکه د همدوی ګټه په کې ده، زه له دوی څخه رزق او خواړه او نورې ګټې نه غواړم، بلکه هغوی ته زه پخپله خواړه او ګټې وررسوم.

فَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذَنُوبًا مِثْلَ ذَنُوبِ أَصْحَابِهِمْ فَلَا يَسْتَعْجِلُونِ ﴿۵۹﴾

پس بېشکه هغو کسانو لره چې ظلم یې کړی دی (په نفسونو خپلو، او په بل چا) حصه د عذاب ده، پشان د حصې د عذاب د یارانو هلاک کړی شوو د دوی، پس تلوار دې نه کوي دوی ! (په ما باندې په غوښتلو د عذاب کې، که یې چېرې وروستی کړم).

تفسیر: یعنې که دا ظالم د بندګی په لوري نه درومي، نو وپوهېږئ چې د نورو ظالمانو په شان د ده سلواغه او بو که هم له کفر او شرک څخه ډکه ده، او اوس ډوبیږي، نو خامخا د هغوی په ژر سزا ورکولو کې تلوار مه کوئ، لکه چې نورو کفّارو ته له الهي سزا څخه برخه رسېدلې ده؛ دوی ته هم رسیږي.

فَوَيْلٌ لِلَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ يَوْمِهِمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿۶۰﴾

پس افسوس هلاکت خرابي سخت عذاب دی هغو کسانو ته چې کافران شوي دي له ورځې د عذابه د دوی څخه، هغه ورځ چې وعده یې ورسره کړی شوې ده.

تفسیر: یعنې د قیامت په ورځ یا له هغې څخه په پخوا د سزا کومه بل ورځ راځي، لکه چې د مکې مشرکانو ته د «بدر» په غزا کې سخته سزا ور ورسېده.

تمّت سورة الذاريات، ولله الحمدُ والمنّة.

# سُورَةُ الطُّورِ

«د (الطور) سورت مکّي دی، (۴۹) آیتونه (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۵۲) او په نزول کې (۷۶) سورت دی، وروسته د «السجدة» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالطُّورِ ﴿١﴾

قسم دی په (غره د) طور باندې.

**تفسیر:** یعنې د «طور» غر چې په هغه باندې موسی علیه السلام له الله تعالی سره خبرې اترې کولې، یا به ترې مراد مطلق غرونه وي، څکه چې د څمکې مېخونه دي، او په کې د مخلوقاتو لوی منافع دي، او په دوی کې د الله تعالی أکرم شأنُه وأعظم برهانُه لوی لوی نعمتونه دي.

وَكِتٰبٍ مَّسْطُورٍ ﴿٢﴾ فِي رَقٍّ مَّنْشُورٍ ﴿٣﴾

او په کتاب لیکلي شوي باندې. په کاغذ ارت خور کړی شوي کې.

**تفسیر:** له دې کتاب څخه ښايي لوح محفوظ مراد وي، یا د خلقو اعمالنامې، یا قرآنکریم یا د طور په مناسبت «تورات» یا عام سماوي کتابونه مراد دي، دا ټول احتمالات شته.

وَالْبَيْتِ الْمَعْمُورِ ﴿٤﴾

او (قسم دی) په کور معمور ودان کړی شوي باندې (په اسمان کې).

**تفسیر:** ښايي چې له دې څخه کعبه شریفه مراد وي، یا د کعبې له محاذ سره سم په اووم اسمان کې د پرښتو کعبه ده، چې هغې ته بیت المعمور وايي، لکه چې له احادیثو څخه ثابته ده.

وَالسَّقْفِ الْمَرْفُوعِ ﴿٥﴾

او قسم دی په چت پورته کړی شوي باندې (چې اسمان دی).

**تفسیر:** یعنې په اسمان باندې قسم دی چې پر څمکې باندې لکه چت داسې دی، یا به له «السقف المرفوع» څخه عرش عظیم مراد وي، چې له ګردو اسمانونو څخه هسک (اوچت) دی، او له روایتونو څخه ښکاري چې هغه د جنّت چت دی.

وَالْبَحْرِ الْمَسْجُورِ ﴿٦﴾

او (قسم دی) په بحر سیند تود یا ډک کړی شوي باندې.

تفسیر: یا به د دنیا کوړم او خارخوري سیندونه (دریاهای جوشان) مراد وي، یا به هغه سیند مقصد وي چې د ګردو اسمانونو د پاسه او تر عرش عظیم لاندې بهیږي، او له روایتونو څخه ثابت شوی دی، ځواب د قسم دا دی چې:

إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ لَوَاقِعٌ ۝٧ مَا لَهُ مِن دَافِعٍ ۝٨

بېشکه عذاب د رب ستا خامخا واقع کېدونکی دی (په مستحق یې). نشته هغه لره هیڅوک دافع لرې کوونکی.

تفسیر: یعنې دا ګرد شیان چې قسم پرې یاد شو شهادت ورکوي چې الله تعالی ډېر یو قوّت او قدرت لرونکی او باعظمت ذات دی، نو په هغو کسانو باندې به چې د ده احکام نه مني؛ ولې سخت عذابونه نه راځي؟ او کوم یو داسې طاقت به پیدا شي چې د هغه د رالیږلي شوي عذاب مخه ونیسي؟.

يَوْمَ تَمُورُ السَّمَاءُ مَوْرًا ۝٩

هغه ورځ چې وخوځیږي اسمان په خوځېدلو سره.

تفسیر: یعنې اسمان به ولړځیږي، او د ډېرو خوځېدلو او لړځېدلو لامله به وشلیږي، وبه چوي.

وَتَسِيرُ الْجِبَالُ سَيْرًا ۝١٠

او روان به شي غرونه په راونېدلو سره.

تفسیر: یعنې غرونه به له خپلو ځایونو څخه وخوځیږي، او پاغوندو غوندې به یوې خوا او بلې خوا ته رغړي، او د وریځو په شان به یوه او بل لوري ته درومي.

فَوَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝١١ الَّذِينَ هُمْ فِي خَوْضٍ يَلْعَبُونَ ۝١٢

نو خرابي افسوس هلاکت دی په دغه ورځ کې دروغجن کوونکیو ته. هغو لره چې دوی په چټي خبرو جوړولو کې لوبې مشغولتیا کوي.

تفسیر: یعنې چې نن په لوبو تماشو او نندارو کې مشغولیږي، او راز راز خبرې جوړوي، او د لوبې ورځې تکذیب کوي، هغوی لـره بـه د آخرت په ورځ کې سخته سزا ورکوله کیږي، او پرته له خرابۍ او تباهۍ به بل کوم شی نه وررسیږي.

يَوْمَ يُدَعُّونَ إِلَىٰ نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا ۝١٣ هَٰذِهِ النَّارُ الَّتِي كُنتُم بِهَا تُكَذِّبُونَ ۝١٤

هغه ورځ چې ټېل وهلی به شي دوی اور د دوزخ ته په ټېل وهلو سره. (وبه ویلی شي دوی ته) دا دی هغه اور چې وئ تاسې چې په دې به مو دروغ ویل (یعنې ترې منکران وئ).

تفسیر: یعنې پرښتې به له هغوی سره په سخت ذلّت او خوارۍ معامله کوي، او په ټېل وهلو سره به یې تر دوزخ پورې بیایي، او هلته ورته وایي: دا دی حاضر او تیار دی هغه اور چې تاسې به هغه دروغ ګڼله.

أَفَسِحْرٌ هَٰذَا أَمْ أَنتُمْ لَا تُبْصِرُونَ ۝١٥

آیا پس سحر کوډې دي دا (عذاب چې وینئ تاسو)؟ که یئ تاسې چې نه یې وینئ؟

تفسیر: یعنې تاسې به په دنیا کې انبیاء علیهم السلام ته کوډګر (ساحر) او د هغوی وحي ته به مو کوډې (سحر) ویلې، اوس نو لږ څه راوښیئ چې دا دوزخ چې د هغه خبر تاسې ته انبیاوو علیهم السلام درکړی وو؛ آیا په رښتیا سره جادو کوډې یا نظربندي ده؟ یا دا چې په دنیا کې ستاسې سترګې د حق له لیدلو څخه عاجزې وې، او نه مو شوې لېدلې، دلته هم د دوزخ د اور له لیدلو څخه عاجزې دي؟.

اِصْلَوْهَا فَاصْبِرُوْٓا اَوْ لَا تَصْبِرُوْا ۚ سَوَآءٌ عَلَيْكُمْ ۭ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶﴾

ځئ ننوځئ په دغه دوزخ کې، پس صبر وکړئ تاسې یا مه کوئ صبر، برابر دي (دغه دواړه کارونه) په تاسې باندې، بېشکه همدا خبره ده چې جزا درکوله شوي تاسې ته د هغو (کارونو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې).

تفسیر: یعنې کله چې په دوزخ کې ولوېږئ او هلته وویرېږئ، او ډېر شورماشور چغې په کې وکړئ؛ نو سره له هغه به هیڅوک ستاسې چغو ته غوږ کېنږدي، او نه به مو مرستې ته څوک درشي، که په فرض محال تاسې لږ څه چپ شئ؛ نو پر تاسې باندې به څوک رحم کوونکی او زړه سوځوونکی هم نه پیدا کیږي.

اِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ جَنّٰتٍ وَّنَعِيْمٍ ﴿۱۷﴾ فٰكِهِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمْ رَبُّهُمْ ۚ وَوَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ﴿۱۸﴾

بېشکه ویریدونکي (له الله ـ ځان ساتونکي له معاصیو) په جنّتونو کې به وي، او په نعمتونو کې به وي. مېوې خوړونکي خوشالیدونکي به وي په هغو (شیانو) چې ورکړي دي دوی ته رب د دوی، او ساتلي دي دوی رب د دوی له عذاب د دوزخ.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې په دنیا کې له الله تعالی څخه ویرېدل، په جنّت کې به بالکل مأمون او بې فکر اوسیږي، هلته به دوی ته د هوساینې، آرامۍ، او د عیش هر راز اسباب او سامان موجود وي، پرته له هغو څخه چې آیا یواځې دا ښېنه او انعام لږ دی، چې الله تعالی به یې د دوزخ له اوره وساتي؟.

او وبه ویل دغو متّقیانو ته له جانبه د الله تعالی أجلّ وأعلی شأنُه وأعظم برهانُه داسې چې:

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓـًٔا بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۹﴾ مُتَّكِـِٕيْنَ عَلٰى سُرُرٍ مَّصْفُوْفَةٍ ۚ

خورئ تاسې او څښئ ښه هضمېدونکي په سبب د هغو (ښو اعمالو) چې وئ تاسې چې کول به مو (په دنیا کې). حال دا چې تکیه کوونکي به ناست وي دوی پر تختونو باندې چې برابر به اېښود شوي وي صف صف.

تفسیر: یعنې د جنتیانو مجلس به هسې وي چې ګرد جنّتیان به لکه باچاهانو غوندې پخپلو تختونو باندې یو له بل سره مخامخ ناست وي، او د هغوی ترتیب به خورا (ډېر) ښه وي.

وَزَوَّجْنٰهُمْ بِحُوْرٍ عِيْنٍ ﴿۲۰﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ بِاِيْمَانٍ اَلْحَقْنَا بِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَمَآ اَلَتْنٰهُمْ مِّنْ عَمَلِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ ۭ

او په نکاح به ورکړو دوی لره حورې ښې ښایستې، غټې سترګې. او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او متابعت کړی وي د دوی اولادونو د دوی په ایمان سره؛ نو پیوست به کړو مونږ په دوی پورې اولاد د دوی، او کم به نه کړو مونږ دغو (پلرونو) لره له (جزاء د) عملونو د دوی هیڅ شی.

تفسیر: یعنې د کاملانو اولاد او د دوی متعلّقین که په ایمان باندې قائم وي، او د همدغو کاملانو په لاره باندې لاړ شي، او هغه خدمتونه چې د دوی اسلافو انجام کړي دي، دوی هم د هغو په انجام او تکمیل کې سعي وکړي؛ نو د الله تعالی په فضل او کرم به دوی په جنّت کې له هغوی سره یو ځای کیږي، که څه هم د دوی اعمال او احوال د دوی له اعمالو او افعالو څخه په څنګه والي او څومره والي کم او کیفیت کې راښکته وي، نو بیا هم د هغو لویانو د عزت او اکرام دپاره دا تابعان له متبوعینو سره یو ځای کیږي او ممکن دي چې ځینو ته پوره همغه ځای او مقام هم ورکړ شي، لکه چې له روایتونو څخه معلومیږي او ښکاري، په دې صورت کې داسې ګمان دی ونه کړ شي چې د دې کاملانو له ځینو ښو څخه به څه قدر لږ کړ شي، او د هغه په بدل کې د دوی ځوځات ته څه ثواب ورکاوه کیږي، نه دا به د الله تعالی له فضل، کرم او احسان څخه وي چې د قاصرینو لږ عمل ته ډېر موقعیت وربښي، او هغه د کاملینو تر مقام پورې رسوي.

كُلُّ امْرِئٍۢ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ ﴿٢١﴾

هر سړی په هغه عمل چې کړی یې وي؛ ګرو آخته دی (که نېک وي که بد).

تفسیر: پاس د «فضل» بیان وو، دلته د «عدل» ضابطه راښیي، یعنې د عدل اقتضاء دا ده: هر سړی چې ښه یا بد عمل وکړي؛ له هغه سره سم خپل بدل مومي، زیات له دې څخه د الله تعالی فضل او کرم دی چې هغه تقصیرات بښي، یا یې کومه درجه لوړوي (اوچتوي).

وَأَمْدَدْنَٰهُم بِفَٰكِهَةٍۢ وَلَحْمٍۢ مِّمَّا يَشْتَهُونَ ﴿٢٢﴾

او مدد به وکړو مونږ له دوی سره په ورکولو د مېوو (په هر وخت کې)، او د غوښو له هغه څیز چې د دوی زړه یې غواړي.

تفسیر: یعنې هر راز غوښې یې چې زړه غواړي، او هره مېوه یې چې په زړه کې وګرځي؛ بې له ډیله او توقفه ورته حاضر او رسیږي.

يَتَنَٰزَعُونَ فِيهَا كَأْسًۭا لَّا لَغْوٌۭ فِيهَا وَلَا تَأْثِيمٌۭ ﴿٢٣﴾

یو له بله به اخلي دوی په دغه (جنّت) کې پیالې (د شرابو) چې نه وي چټي ویل په هغې کې، او نه نسبت کول د ګناه یو بل ته.

تفسیر: یعنې کوم وخت چې د شراب طهور دوره وشي؛ نو جنتیان به د خوش طبعي په ډول یو د بل له لاسه کاسې (ګلاسونه) سره اخلي، خو په دې پاکو شرابو کې به یواځې خوند، نشاط او مزه وي، نشه، چټي خبرې او اپلتې به نه وي، او په هوش او عقل کې څه نقصان او فتور نه ورپېښوي، او نه به ګناه کې څه مرسته کوي، او نه کومه بده پېښه ورځنې پیښیږي.

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ غِلْمَانٌۭ لَّهُمْ كَأَنَّهُمْ لُؤْلُؤٌۭ مَّكْنُونٌۭ ﴿٢٤﴾

او چاپېر به ګرځي (لپاره د خدمت) پر دوی باندې غُلامان ځنکیان د دوی، ګواکې دغه (خُدام په حُسن او پاکۍ کې) مرغلرې پټې په غلاف کې ساتلې شوي به وي.

تفسیر: یعنې لکه مرغلرې پخپل پوښ (غلاف) کې به بالکل پاک، صاف، او شفّاف وي، هیڅ دوړه ګرد او غبار ورته نه رسیږي، د دوی د پاکۍ او ستر حال به هم همداسې وي.

وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴿٢٥﴾ قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ﴿٢٦﴾ فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ ﴿٢٧﴾ إِنَّا كُنَّا مِن قَبْلُ نَدْعُوهُ ۖ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ ﴿٢٨﴾

او مخ به کړي ځینې د دوی ځینو نورو ته چې پوښتنې به سره کوي (له دنیوي مشقّتونو څخه تشکّرًا). وبه وایي دوی چې: بېشکه مونږ رومبی له دې نه وو په اهل خپل کې ویریدونکي (له عذابه). نو احسان وکړ الله پر مونږ باندې، او ویې ساتلو مونږ له عذاب د تودوخې ګرمی (د دوزخ). بېشکه مونږ وو مونږ پخوا له دې څخه (په دنیا کې) چې عبادت به مو کاوه د دغه (الله)، بېشکه چې دغه (الله) همدی دی ډېر ښه احسان کوونکی خورا (ډېر) رحم کوونکی دی.

**تفسیر:** یعني جنّتیان به په هغه جنّت کې یو د بل په لوري متوجه کیږي، او خبرې به سره کوي، او د خورا (ډېر) مسرّت او امتنان له سببه به یو بل ته داسې وایي: «وروڼو ! مونږ په دنیا کې له الله تعالی څخه ویریدو، او په دې اندېښنې کې تل اوسېدو چې وروسته له مړینې به په مونږ باندې څه راځي؟ د الله تعالی دې احسان ته وګورئ ! چې نن مونږ څومره ډاډه، مطمئن او مأمون یو، چې د دوزخ یو تود باد او ورمه هم مونږ ته نه ده رسېدلې».

فَذَكِّرْ فَمَا أَنتَ بِنِعْمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٍ وَلَا مَجْنُونٍ ﴿٢٩﴾

پس پند ورکوه ته (ای محمده ! خلقو ته) پس نه یې ته په سبب د فضل نعمت د رب خپل سره فال ګر (خبر ورکوونکی له غیبه) او نه مجنون ـ لېونی.

**تفسیر:** کفّارو څمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم کله لېونی، کله کاهن، کله له پیریانو او شیطانانو څخه خبرې اورېدونکی باله، او ویل به یې چې: دوی له هغوی څخه څه خبرې اوري، بیا له هغه سره نورې خبرې ګډوي، مګر بې عقلان په دې باندې نه پوهېدل چې تر اوسه پورې کوم یو کاهن، شاعر، یا لیوني داسې پندونه، او حکیمانه اصول او داسې خوږې خبرې او هسې ښې ویناوې کړې وي؟ نو ځکه الله تعالی خپل حبیب صلی الله علیه وسلم ته وایي چې تاسې د هغوی له پوهولو څخه لاس مه اخلئ !، او د خپل رسالت پندونو ته دوام ورکړئ !، او د دوی له دې چټي خبرو څخه مه خپه کېږئ !، ځکه چې د الله تعالی له فضل او کرم څخه نه تاسې لیوني، نه کاهن یئ، بلکه د هغه مقدس استاځی او رسول یئ، او نصیحت کول ستاسې منصبي فرض دی، نو تل په هغه باندې دوام ولرئ !.

أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴿٣٠﴾

آیا وایي دوی دی شاعر دی مونږ منتظر یو په ده باندې ګردش حوادثو د زمانې ته.

**تفسیر:** یعني دغه پیغمبر صلی الله علیه وسلم چې دغو منکرینو ته د الله تعالی خبرې اوروي، او پندونه ورکوي؛ آیا دا خلق یې ځکه نه مني، چې هغه محض شاعر ګڼي، او د دې خبرې په انتظار کې دي؛ هسې چې د پخوانی زمانې ډېر شاعران د زمانې په ګردش کې مړه شوي دي؛ دی به هم مري؟.

قُلْ تَرَبَّصُوا فَإِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُتَرَبِّصِينَ ﴿٣١﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) منتظر اوسئ تاسې (هلاکت څما ته)، پس بېشکه زه له تاسې سره له منتظرانو څخه یم (اهلاک د تاسې ته).

**تفسیر:** یعني ښه دی، تاسې څما انجام ته ګورئ، زه به ستاسې انجام ته ګورم، ژر دی چې دا غوټه به خلاصیږي، نو دا به درښکاره شي چې څوک خائب او خاسر دي؟.

أَمْ تَأْمُرُهُمْ أَحْلَامُهُم بِهَٰذَا ۚ أَمْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ﴿۳۲﴾

آيا امر حكم كوي دوى ته عقلونه د دوى په دې (كار) يا دوى يو قوم دى سر كښه شر خوښوونكي تېرېدونكي له حده (جګړو او په عنادونو كې).

تفسير: يعنې پيغمبر صلى الله عليه وسلم ته له ليوني ويلو څخه دا ښكاري چې ګواكې هغوى ډېر پوهان او عقلمندان دي، نو آيا د دوى عقل او پوهـه دا ورښيي چې ډېر صادق، أمين، پوه عاقل او په رښتيا پيغمبر ته شاعر، كاهن او لېونى ووايي، او د هغه له ښوونې څخه ستر ګې واړوي، كه دوى د شاعرانو او پيغمبرانو د ويناوو په منځ كې څه فرق او توپير نه شي كولى؛ نو دوى څرنګه پوهان او عقلمندان دي؟ مګر حقيقت خو دا دى چې دوى پخپلو زړونو كې په ګردو خبرو باندې په ښه شانې پوهيږي، خو په ښكاره داسې چټې خبرې كوي، او د شرارت چارې وړاندې كوي.

أَمْ يَقُولُونَ تَقَوَّلَهُ ۚ بَل لَّا يُؤْمِنُونَ ﴿۳۳﴾ فَلْيَأْتُوا بِحَدِيثٍ مِّثْلِهِ إِن كَانُوا صَادِقِينَ ﴿۳۴﴾

آيا وايي دوى چې له ځانه يې جوړ كړى دى دا (قرآن، نه ده داسې) بلكه دوى ايمان نه راوړي (تكبّرًا عنادًا). پس رادې وړي دوى يوه خبره (جوړه كړى شوې) په شان د دې (قرآن په فصاحت او بلاغت كې) كه چېرې وي دوى رښتيني په دې (وينا).

تفسير: يعنې داسې خيال كوي پيغمبر صلى الله عليه وسلم هغه چې اوروي؛ هغه د الله تعالى كلام نه دى، بلكه هغه دى له خپله ځانه جوړوي، او د هغه د دروغو خبرو نسبت الله تعالى ته كوي؟ كه څوك وغواړي چې دا ښكاره خبره ومني؛ نو دومره خبره د هغه د منلو لپاره كافي ده، چې د دنيا ګرد طاقتونه كه سره يو ځاى شي؛ نو د دې پاك قرآن په شان يو كتاب نشي راوړى.

أَمْ خُلِقُوا مِنْ غَيْرِ شَيْءٍ أَمْ هُمُ الْخَالِقُونَ ﴿۳۵﴾ أَمْ خَلَقُوا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ ۚ بَل لَّا يُوقِنُونَ ﴿۳۶﴾

آيا پيدا كړى شوي دي دوى بې له يو څيز (خالق پخپل سر)؟. يا كه دوى پخپله پيدا كوونكي دي د ځانونو خپلو؟. آيا پيدا كړي دي دوى اسمانونه او ځمكې؟ (نه ده داسې، خالق د ټولو الله دى)، بلكه يقين نه كوي دوى (او نه يې مني چې ايمان راوړي په هغه باندې او بندګي وكړي د هغه).

تفسير: يعنې دغه منكران د الله تعالى د پيغمبر صلى الله عليه وسلم خبرې ولې نه مني؟ آيا په دوى باندې هيڅ يو هسې الله نشته چې د هغه حكم منل په دوى لازم وي؟ آيا دوى پرته له كوم پيدا كوونكي څخه پخپل سر پيدا شوي دي؟ آيا دوى خپل ځان خداى ګڼي؟ داسې خيال كوي چې اسمان او ځمكه د دوى جوړ كړي شيان دي؟ دوى هم پخپلو زړونو كې ښه پوهيږي چې هرومرو الله تعالى شته، چې همغه الله تعالى د دوى او د ځمكې او اسمان پيدا كوونكى دى، مګر سره له دې علمه دوى له هغه ايمان او يقين څخه چې شرعًا مطلوب دي؛ محروم او بې برخې دي.

أَمْ عِندَهُمْ خَزَائِنُ رَبِّكَ أَمْ هُمُ الْمُصَيْطِرُونَ ﴿۳۷﴾

آيا له دوى څخه دي خزانې د رب ستا؟ آيا همدوى دي واكداران؟ (زوروران چې كوي هر كار پخپل سر، بلكه دوى ټول د الله تعالى تر حكم لاندې دي).

تفسير: آيا دوى داسې خيال كوي چې ځمكه او اسمان د الله تعالى له جوړ كړيو شيان څخه دى، خو الله تعالى د خپلو خزانو مالكان دوى ګرځولي دي؟ يا د ده په ملك او خزانو باندې دوى په زور او تسلّط سره قبضه كړې ده؟ نو دوى سره له دومره تسلّط، تصرّف او اقتدار څرنګه مطيع او منقاد كېدى شي؟.

أَمْ لَهُمْ سُلَّمٌ يَسْتَمِعُونَ فِيهِ ۖ فَلْيَأْتِ مُسْتَمِعُهُم بِسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٣٨﴾

آیا شته دوی ته اندرپایه (چې پرې خیژي اسمان ته او) اورېدل کوي په هغې باندې (خبرو د ملائکو ته)؟ پس را دې وړي هغه اورېدونکی د دوی یو بُرهان سند ښکاره (په صحّت د اورېدلو د ده باندې).

تفسیر: یعني آیا هغوی داسې دعوی کوي چې دوی پوړۍ درولې، پر اسمان باندې ختلي دي، او هلته یې له ملأ الأعلی څخه خبرې اورېدلي دي، کله چې دوی پخپل سر تر هغه درباره پورې رسېدی شي؛ نو د بل چا متابعت ته اړ نه دي؟ څوک چې هسې دعوی کوي؛ نو بسم الله رادې شي، او خپل حُجّت، قاطع سند، لامع برهان او بیان دې راوړاندې کړي، اوس په حماقت او جهالت د مشرکانو کې فرمایي چې:

أَمْ لَهُ الْبَنَاتُ وَلَكُمُ الْبَنُونَ ﴿٣٩﴾

آیا هغه (الله) لره لوڼې دي (په زعم ستاسې)؟ او تاسې لره ځامن دي.

تفسیر: یعني آیا دغه منکران، الله تعالی له خپل ځان څخه ښکته ګڼي؟ معاذ الله لکه چې د دوی د لوڼو او ځامنو له ویشلو څخه راڅرګندیږي، نو ځکه د هغه د احکامو او هدایتونو په مخ کې غاړه اېښودل د خپل شان کسر بولي.

أَمْ تَسْأَلُهُمْ أَجْرًا فَهُم مِّن مَّغْرَمٍ مُّثْقَلُونَ ﴿٤٠﴾

آیا ته غواړې له دوی څخه (ای محمده !) څه اجر بدل؟ پس دوی له تاوان (د هغه) درانه کړی شوي دي؟ (او ځکه در څخه تاووي مخ، او نه مؤمنانیږي له عناده).

تفسیر: آیا دا خلق ځکه ستاسې خبرې نه مني، چې الله تعالی دې نه کړي تاسې په ارشاد او تبلیغ باندې له هغوی څخه څه باړه مزدوري او معاوضه غواړئ، چې د هغه د دروندوالي لامله تور خوري.

أَمْ عِندَهُمُ الْغَيْبُ فَهُمْ يَكْتُبُونَ ﴿٤١﴾

آیا په نزد د دوی (علم د) غیب دی، نو دوی یې لیکي (له هغه نه).

تفسیر: یعني آیا پخپله الله تعالی پر دوی باندې وحي لیږي، او لکه پیغمبران دوی له خپلو اسرارو څخه خبروي چې دوی یې لیکي، لکه چې د انبیاوو علیهم السلام وحي لیکلی کیږي، نو ځکه دوی ستاسې پیروي ته څه ضرورت نه لري، بلکه نه ده دا خبره چې له دوی څخه علم د غیب وي، بلکه دوی صرف ضد نیولي، نو ځکه ایمان نه راوړي.

أَمْ يُرِيدُونَ كَيْدًا ۖ فَالَّذِينَ كَفَرُوا هُمُ الْمَكِيدُونَ ﴿٤٢﴾

آیا اراده لري دوی د مکر کولو (او د چل په اهلاک د تا)؟ پس هغه کسان چې کافران شوي دي؛ هم په دوی باندې مکر کړی شوی دی (او خپله جزاء مومي).

تفسیر: یعني له دغو پاسو خبرو څخه هیڅ یوه خبره نشته، نو بیا آیا داسې اراده لري چې له پیغمبر سره فریب دروغ چل او مکر وکړي؟، او په خفیه تدابیرو په پټو غوټو سره حق مغلوب یا یې له منځه وباسي؟، که داسې وي نو په یاد یې ولرئ، چې هغه مکر، چل، او فریب ګرد د همدوی په غاړه کې لویږي، ژر به دوی ته دا څرګنده شي چې آیا حق

مغلوب کېدونکی دی؟ که دوی پخپله له منځه وتونکي او فناء کېدونکي دي؟ بلکه حق ځامخا غالب دی، او پخپله همدوی په همدغه خپل کنستلي کوهي کې لویږي.

أَمْ لَهُمْ إِلَٰهٌ غَيْرُ اللَّهِ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۴۳﴾

آیا شته دوی ته کوم معبود بې له الله؟ پاکي ده الله لره له هغه شي چې دوی یې ورسره شریکوي (نور).

تفسیر: یعنې آیا بې له الله تعالی بل کوم حاکم یا معبود یې تجویز کړی دی چې د مصیبت په وخت کې د هغوی مرسته وکړي، او د هغه عبادت دوی د الله تعالی له عبادت څخه بې پروا کړي دي؟ نو په یاد یې ولرئ، چې دا ګرد اوهام او وساوس دي، او د الله تعالی ذات له ګردو څخه پاک او د هغه هیڅوک شریک، مثیل، مقابل او مزاحم نشي کېدی.

وَإِن يَرَوْا كِسْفًا مِّنَ السَّمَاءِ سَاقِطًا يَقُولُوا سَحَابٌ مَّرْكُومٌ ﴿۴۴﴾

او که ووینې دوی یوه ټوټه له اسمانه رالوېدونکې؛ نو وبه وایي (دا) وریځ ده پربړه (غټه) یو پر بلې باندې سوره شوې.

تفسیر: یعنې په حقیقت کې له دوو خبرو څخه هیڅ یوه هم نشته، او یواځې یوه خبره ده چې هغه عناد او ضد دی، او د هغه لامله دا خلق هر رښتیا خبره دروغ ګڼي، او د هغې په دروغ بللو باندې ټینګ ولاړ دي، د دې خبرې کیفیت دا دی: که د دوی له غوښتنې سره سم د اسمان یوه ټوټه هم راولوېږي، او دوی هغه پخپلو سترګو سره هم ووینې، نو بیا هم هغه ته خبرې جوړوي، او څه په څه تأویل په کې کوي، مثلاً وایي به چې دا د اسمان ټوټه نه ده، بلکه د وریځې یوه پربړه (غټه) حصه ده چې منجمد شوې راولوېده.

فَذَرْهُمْ حَتَّىٰ يُلَاقُوا يَوْمَهُمُ الَّذِي فِيهِ يُصْعَقُونَ ﴿۴۵﴾ يَوْمَ لَا يُغْنِي عَنْهُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿۴۶﴾

نو پرېږده دوی تر هغه پورې چې یو ځای شي (مخامخ شي) دوی له ورځې خپلې سره، هغه چې په کې وبه لویږي پر دوی باندې ټکه (تندر) (د برېښنا یا بې هوشه هلاک کړی شي). هغه ورځ چې وبه نه کړي دفع له دوی نه کید مکر د دوی هیڅ څیز (له عذابه د الله)، او نه به له هغوی سره څه مدد مرسته وکړه شي.

تفسیر: یعنې په هسې معاندینو پسې زیات لوېدل دومره په کار نه دي، پرېږدئ چې د څو ورځو له مخې لوبې وکړي، او خبرې جوړې کړي، آخره هغه ورځ راتلونکې ده چې د الله تعالی د قهر برېښنا (تندر) پرې ولویږي، او د دوی هوش او حواس والوځي، او د ژغورنې هیڅ ترتیب به یې په کار نه ورځي، نه له کوم لوري ورته مرسته رسیږي، غالبًا له دې څخه به قیامت مراد وي.

وَإِنَّ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا عَذَابًا دُونَ ذَٰلِكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۴۷﴾

او بېشکه هغو کسانو لره چې ظلم یې کړی (کافران شوي) دی (اخروي) عذاب دی بې له دې (دنیوي) عذابه، ولیکن زیاتره د دوی نه پوهیږي (نو ځکه مخ ګرځوي له ایمانه).

**تفسير:** يعنې له دوی څخه زياتره سړي په دې خبر نه دي چې پرته له آخرته په دنيا کې هم دوی ته يوه سزا او هيداد رسېدونکی دی، ښايي چې له دې څخه د «بدر» غزا او د نورو غزواتو سزاوې مراد وي.

وَٱصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ فَإِنَّكَ بِأَعْيُنِنَا

او صبر کوه ته (ای محمده !) حکم د رب خپل ته، بېشکه ته څمونږ د سترګو لاندې يې، چې وينو دې او حفاظت دې کوو.

**تفسير:** يعنې له صبر او استقامت سره د خپل رب د تکويني او تشريعي حکم انتظار وباسئ، چې ژر به ستاسې او د هغو په منځ کې فيصله وکړي، او تاسې ته به د مخالفينو له خوا هيڅ نقصان نه رسيږي، ځکه چې تاسې څمونږ تر سترګو لاندې يئ، او ستاسې ساتنه او حفاظت څمونږ په غاړه دی.

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ حِينَ تَقُومُ ﴿٤٨﴾

او تسبيح وايه پيوست له حمده د رب خپل سره په هغه وخت کې چې راپاڅېږئ (له خوبه يا له مجلسه).

**تفسير:** يعنې له صبر، تحمّل، سکون او اطمينان سره تل د الله تعالی په تسبيح، تحميد او عبادت کولو کې مشغول اوسئ !، په تېره بيا کله چې له خوبه راپاڅېږئ !، يا لمانځه ته ودرېږئ !، يا له مرکې څخه تشريف يوسئ، په دې حالاتو کې د تسبيح او تهليل او نورو اذکارو ډېر ترغيب او تأکيد شوی دی.

وَمِنَ ٱلَّيْلِ فَسَبِّحْهُ وَإِدْبَٰرَ ٱلنُّجُومِ ﴿٤٩﴾

او په بعض د شپې کې پس تسبيح ووايه د دغه (الله)، او د وروستو د ستوريو څخه (يعنې د شپې په آخره کې هم تسبيح ووايه).

**تفسير:** د شپې له برخې څخه ښايي چې د تهجّد وخت مراد وي، او د ستوريو نه شا ګرځولو وقت ګهيځ (سحر) دی، ځکه چې په دې مهال کې ګرد ستوري د سحر په رڼا کې پټيږي.

تمّت سورة الطور، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ النَّجْمِ

«د (النجم) سورت مکّي دی، پر ته (علاوه) د (۳۲) آیته څخه چې مدني دی، (۶۲) آیته (۳) رکوع لري، په تلاوت کې (۵۳) او په نزول کې (۲۳) سورت دی، وروسته د «الاخلاص» له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالنَّجْمِ إِذَا هَوٰى ۝١ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوٰى ۝٢

قسم دی په ستوریو باندې کله چې پرېوځي (غروب وکړي، یا راوخیژي طلوع وکړي). نه دی ګمراه شوی ملګری (رسول) ستاسې، او نه یې لاره ورکه کړې ده.

تفسیر: له «صاحب» او «رفیق» او ملګري څخه نبي کریم صلی الله علیه وسلم مراد دی، یعنې نه دی د غلط فهمی لامله له لارې څخه وتلی دی، او نه په خپل قصد او اختیار سره پوهېدلی بې لارې تللی دی، بلکه هم هغسې چې د اسمان ستوري له ختلو څخه نیولې تر پرېوتلو پورې په یوه ټاکلي تګ او لارې باندې درومي، او یوې خوا بلې خوا ته نه خوځېږي، د نبوّت لمر هم په همغه ډول د الله تعالی په ټاکلي لارې باندې برابر ځي، او هیڅېرې یوه او بل لوري ته نه ځي.

وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝٣ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ۝٤

او خبرې نه کوي (محمد) له هوا (خپلې) نه. نه دی دغه (قرآن) مګر وحي ده چې ورته لېږلې شوې ده.

تفسیر: یعنې مخالف عمل او کار چېرې؟، د دوی له مبارکې خولې څخه داسې یو توری هم نه دی وتلی چې د دوی په نفساني غوښتلو باندې مبني وي، بلکه دوی هر هغه شی چې د دیني امورو په نسبت فرمایلی دی؛ هغه د الله تعالی رالېږلې وحي ده، او هغه ګرد د الله تعالی له حکمونو سره سم وو، د دوی په منځ کې متلوّ وحي ته قرآن او غیر متلوّ وحي ته حدیث ویلی شي.

عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى ۝٥ ذُوْ مِرَّةٍ ؕ

ښوولې ده ده ته د سختو قوّتونو مالك (جبرئیل). چې خاوند د ښه قوت صورت عقل دی.

تفسیر: یعنې اصلي وحي لېږونکی الله تعالی دی، خو د هغه په وسیله چې دا وحي تر دوی پورې رسیږي، او هغه چې په ښکاره ډول ده ته ښوونه کوي؛ هغه د ډېرو قوّتونو څښتنه، خورا زوروره، او وجیهه پرښته ده، چې هغې ته «جبریل أمین» وایه شي، لکه چې د (التکویر) په سورت کې یې هم د «جبریل أمین» په نسبت فرمایلي دي: ﴿إِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ۝ ذِيْ قُوَّةٍ عِنْدَ ذِي الْعَرْشِ مَكِيْنٍ﴾ الآیة ـ

فَاسْتَوٰى ۝٦ وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلٰى ۝٧

بیا برابر کېناست. او هغه وو په کنارو لوړو (اوچتو) (له اسمانه).

**تفسیر:** له لوړو (اوچتو) کنارو څخه زیاترو مفسّرینو شرقي افق مراد کړي دي، چې له هغه ځایه سپېده داغ برېښي، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د بعثت په اول کې یو ځلې جبریل أمین پخپل اصلي صورت سره ورښکاره شو، چې په یوه کرسۍ باندې ناست وو، په هغه وخت کې د اسمان یوه څنډه تر بلې څنډې پورې د هغه له وجود څخه ډکه ښکارېده، او خورا لویه او ویروونکې په نظر راتله، چې له دې امله څمونږ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له دوی څخه دومره وویرېد چې د (مدّثر) سورت نازل شو.

ثُمَّ دَنَا فَتَدَلّٰى ﴿٨﴾ فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنٰى ﴿٩﴾ فَأَوْحٰٓى إِلٰى عَبْدِهٖ مَآ أَوْحٰى ﴿١٠﴾

بیا نژدې شو (جبریل محمد ته) پس ښه نژدې شو. پس وو په منځ د نژدېوالي د دوو لیندو یا ډېر نژدې له دې نه هم. پس وحي وکړله (الله په ژبه د جبریل) بنده خپل ته هغه چې وحي یې وکړه.

**تفسیر:** یعنې جبریل علیه السلام سره له دې چې له خپل اصلي مستقر سره تعلّق لري، خو سره له هغه هم راښکته شو، او رسول الله صلی الله علیه وسلم مبارک ته دومره نژدې شو چې د دواړو په منځ کې د دوو لاسو یا د دوو لیندو څخه زیاته فاصله نه وه پاتې، په خپل هغه وخت کې الله تعالی پر خپل خاص بنده محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې وحي ورنازله کړه، غالبًا له دې څخه د «المدثر» سورت دا آیتونه مراد وي: ﴿يَآ أَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ * قُمْ فَأَنْذِرْ﴾ الآیة ـ یا به نور احکام وي.

مَا كَذَبَ الْفُؤَادُ مَا رَاٰى ﴿١١﴾

نه وو ویلي دروغ زړه (د محمد) هغه چې لیدلی یې وو (په سترګو) (جبریل).

**تفسیر:** یعنې محمد صلی الله علیه وسلم جبریل علیه السلام په خپلو سترګو سره ولید، او زړه یې ورته وویل چې: په دې وخت کې په زړه پورې هم هغسې چې ښایي ته جبریل علیه السلام ته وګوره، او په دې کې ته هیڅ غلطي نه کوې، او د یوه شي په ځای بل شی په نظر نه درځي، په دې ویلو کې د ده زړه رښتین وو.

أَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى ﴿١٢﴾

پس آیا تاسې جګړې کوئ له هغه (محمد) سره په هغه کې چې ده لیدلې دي.

**تفسیر:** یعنې وحي لېږونکی الله او وحي راوړونکې هسې پرښته ده چې د هغه صورت، سیرت، فهم، حفظ، او نور صفات ګرد ښایسته او ښه او د هغې ګرد قوّتونه کامل دي، او بیا داسې سره نژدې شول او وحي یې ور ورسوله چې پیغمبر هغه پخپلو سترګو سره ولید، او د هغه صاف او روڼ زړه د هغه تصدیق وفرمایه، نو آیا په هسې لیدلي شوي او ښه اورېدلي شوي څیز کې تاسې لره د داسې چتې او اپلتې خبرې کولو څه حق شته؟ چې خامخا په کې فضول بحثونه او بېکاره جګړې او تکرارونه وکړئ.

وَلَقَدْ رَاٰهُ نَزْلَةً أُخْرٰى ﴿١٣﴾ عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى ﴿١٤﴾ عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوٰى ﴿١٥﴾

او خامخا په تحقیق لیدلی وو محمد هغه (جبریل) په راښکته کېدلو کې بل ځلې په نزد د ونې د بېرې سدرة المنتهی (چې منتها د علم د خلقو دی). په نزد د هغې دی جنّت المأوی (یعنې ځای د هستوګنې د مؤمنانو).

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «دویم ځلي یې جبریل علیه السلام پخپل اصلي صورت د معراج په شپه په اووم اسمان کې د بېرې له ونې سره ولید، چې هغه د پورتنیو او ښکتنیو مخلوقاتو په منځ کې وېش سرحد دی، یعنې چې پاسني خلق لاندې او ښکتني خلق پورته نشي تلی، او د هغه په خوا کې جنّت یې هم وکوت»

إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ﴿١٦﴾

(لیدلی وو محمد جبریل لره) کله چې پټې کړې هغې ونې د بېرې لره هغه څه چې پټ کړې یې وو.

تفسیر: یعنې د حق تعالی انوارو او تجلیّاتو پر دې ونې باندې پلوشې اچولي دي، او د پرښتو د هجوم او کثرت دا حال وو چې د دې ونې له هرې پاڼې سره یوه پرښته په نظر راتله، په ځینو روایاتو کې راغلي دي چې (ما یغشي) پتنونه (پتنګان) دي، یعنې ډېر ښه صورت لري چې د هغې په لیدلو سره زړه خوښېږي، په دې وخت کې د دې ونې د بهار او د سینګار او د هغې د حسن او جمال داسې یو حال دی چې هیڅ یو مخلوق د هغې صفت په الفاظو سره نشي کولی.

مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغَىٰ ﴿١٧﴾

نه وې کږځېدلې ستر ګې د (محمد بلې خوا ته) او نه دی تېر شوی (له حده).

تفسیر: یعنې هر هغه شی چې د محمد صلی الله علیه وسلم ستر ګو ولید؛ په پوره تمکّن او اتقان سره وو، نه کتنه کږه شوې ده، او ښې او کیڼې او ښکته او پورته خوا ته اوښتې ده، او نه یې له مبصَر څخه تجاوُز کړی وړاندې تېره شوې ده، پس په هغه شي باندې نښتې وه چې د هغه ښوونه منظور وه.

لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ ﴿١٨﴾

خامخا په تحقیق لیدلي دي (محمد) له (ځینو) د لائلو د رب خپل چې ډېر لوی وو.

تفسیر: د ﴿إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ﴾ په تفسیر کې هغه بیان چې شوی دی، برسېره په هغه باندې هغه نور شیان چې لیدلي او اوریدلي یې وي؛ هغه الله تعالی ته ښه معلوم او ښکاره دي.

أَفَرَأَيْتُمُ اللَّاتَ وَالْعُزَّىٰ ﴿١٩﴾ وَمَنَاةَ الثَّالِثَةَ الْأُخْرَىٰ ﴿٢٠﴾

آیا پس وینئ تاسې لات او عُزّی او منات (په مرتبه کې) دریم بل له دغو (یعنې دغه بُتان بیخي بېکاره شیان دي).

تفسیر: یعنې د هغه الله تعالی په مقابل کې چې د هغه عظمت او جلال لره حد او اندازه نشته، د دې سپکو او ناولو شیانو له نوم اخیستلو څخه شرم په کار دی.

تنبیه: «لات ـ عُزّی ـ منات» د هغې زمانې د کفارو د بتانو او باطلو معبودانو نومونه دي، د دوی له منځه (لات) د طائفیانو په نزد ډېر معظم وو، او (منات) د اوس او خزرج او خُزاعه په نزد او (عُزّی) د قریشو او بني کنانه او نورو په نزد ډېر معزّز وو، چې له هغو دوو ړومبنیو څخه یې ده ته عزّت ورکاوه، او (عُزّی) چې په مکه مکرّمه کې نخلې ته نژدې وو، بیا (لات) چې په طائف کې وو، بیا له دوی څخه وروسته په دریمه درجه (منات) چې له مکې څخه لرې او مدینې ته نژدې وو، په ځینو تفاسیرو کې پر دې ځای کې یوه قصّه نقل کوي چې د محدّثینو د جمهورو له اصولو سره سم د صحت تر درجې پورې نه رسیږي.

أَلَكُمُ الذَّكَرُ وَلَهُ الْأُنثَىٰ ﴿۲۱﴾ تِلْكَ إِذًا قِسْمَةٌ ضِيزَىٰ ﴿۲۲﴾

آیا تاسې لره (ای کُفّارو) هلکان دي او دغه (الله) لره لوڼې دي. دا (قسمت د اولاد) په دې شان قسمت دی ډېر کوږ ناکاره.

تفسير: یاقوت په (معجم البُلدان) کې لیکي چې: کافرانو دا بُتان د الله تعالی لوڼې بللې، خو اول الله هغه لوی ذات دی چې صفت یې په ﴿لَمْ يَلِدْ ۙ وَلَمْ يُولَدْ﴾ سره شوی دی، او بالفرض که د اولاد تقسیم هم ومنل شي؛ نو دا تقسیم څومره خراب او بېکاره دی، چې تاسې خپلو ځانونو ته هلکان او الله تعالی ته لوڼې ورکوئ (العیاذ بالله).

إِنْ هِيَ إِلَّا أَسْمَاءٌ سَمَّيْتُمُوهَا أَنتُمْ وَآبَاؤُكُم مَّا أَنزَلَ اللَّهُ بِهَا مِن سُلْطَانٍ ۚ

نه دي (دا بُتان) مګر خو تش نومونه دي چې اېښي دي تاسې دوی لره تاسې او پلرونو ستاسې، نه دی نازل کړی الله په دغه (عبادت د بُتانو) باندې کوم برهان ـ علمي سند.

تفسير: یعنې په تېرو او ونو باندې یو څه نوم ږدي، چې د هغوی پر الوهیت باندې کوم برهان او علمي سند نه لري، بلکه د هغوی پر خلاف دلائل قائم دي، هغوی ته چې تاسې پخپلو خیالونو کې که د الله تعالی لوڼې یا د هغه هلکان یا بل شی وایې؛ دا ګردې چټې او د خولې خبرې دي، چې هیڅ صحیح نه دي او څه حقیقت نه لري.

إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَمَا تَهْوَى الْأَنفُسُ ۖ وَلَقَدْ جَاءَهُم مِّن رَّبِّهِمُ الْهُدَىٰ ﴿۲۳﴾

متابعت نه کوي دوی مګر خو د ګمان خپل، او د هغه شي چې غواړي يې نفسونه د دوی، او خامخا په تحقیق سره راغلی دی دوی ته له ربه د دوی څخه هدایت او لارښوونه.

تفسير: یعنې سره له دې چې د الله تعالی له خوا د هدایت رڼا راغلې ده، او سمه لاره یې راښوولې ده، مګر دا ناپوهان د هم هغو اوهامو او د هغو خبرو چې ددوی په زړونو کې ګرځي؛ متابعت کوي، اود ګمانونو په توره تیاره کې سره نښتي دي.

أَمْ لِلْإِنسَانِ مَا تَمَنَّىٰ ﴿۲۴﴾ فَلِلَّهِ الْآخِرَةُ وَالْأُولَىٰ ﴿۲۵﴾

آیا شته (کافر) انسان لره هغه چې غواړي يې (له نبوّت اواخروي سعادت؟ بلکه نشته). پس خاص الله لره دی (سلطنت او باچايي د) آخرت او د دنیا.

تفسير: یعنې هسې اټکل او ګمان کوي چې دا بُتان به څمونږ سپارښت کوي، دا خو تش خیال او تشې ارزوګانې دي، آیا هر هغه تمنّا او ارزو چې سړی یې وکړي؛ هغه یې په لاس ورځي، په یاد یې ولرئ چې د دنیا او آخرت ګردې ښېګڼې د الله تعالی په لاس کې دي.

وَكَم مِّن مَّلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا إِلَّا مِن بَعْدِ أَن يَأْذَنَ اللَّهُ لِمَن يَشَاءُ وَيَرْضَىٰ ﴿۲۶﴾

او ډېرې دي له ملائکو څخه په اسمانونو کې چې نه دفع کوي شفاعت سپارښت د دوی هیڅ شی مګر وروسته له هغه چې اذن حکم وفرمايي الله لپاره د هغه چا چې اراده وفرمايي او راضي وي په شفاعت یې.

تفسير: یعنې د دې بتانو حقیقت څه دی؟ د اسماني هستېدونکيو د مقرّبو پرښتو شفاعت او سپارښت هم هیڅ په کار نه راځي، هو ! د هر چا په حق کې چې پاک الله د سپارښت کولو حکم وکړي؛ هغه د کار شی دی، او هغه له هر چا څخه

چې خوښ وي؛ همغه ګټور دی، ښکاره ده چې هغه نه بتانو ته د سپارښت کولو اذن ورکړی دی، او نه دی له کافرانو څخه خوښ دی.

إِنَّ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ لَيُسَمُّونَ الْمَلَائِكَةَ تَسْمِيَةَ الْأُنثَىٰ ﴿٢٧﴾ وَمَا لَهُم بِهِ مِنْ عِلْمٍ ۖ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ ۖ وَإِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا ﴿٢٨﴾

بېشکه هغه کسان چې ایمان نه راوړي په آخرت باندې؛ خامخا نوموونه ږدي پر ملائکو باندې په نوم اینښودلو د ښځو سره. او نشته دوی ته په دې وینا کې هیڅ علم پوهه، متابعت نه کوي دوی مګر خو د ګمان، او بېشکه ګمان نه دفع کوي له حق څخه هیڅ شی.

تفسیر: هر څوك چې په آخرت باندې یقین او باور نه لري؛ هغه له سزا او هیداد څخه بېفکره کیږي، او په داسې بېباکۍ او بېفکرۍ کې اخته کیږي چې الله تعالی ته بد نسبتونه کوي، او مثلاً وايي چې: پرښتې ښځې او د هغه لوڼې دي، دا محض د دوی جهالت او ناپوهي ده، ځکه چې پرښتې له نارینتوب اوښځیتوب سره هیڅ تعلق او علاقه نه لري، او الله تعالی به څرنګه اولاد ولري؟ که څوك په رښتیا او ټینګو خبرو باندې قائم وي؛ نو په داسې ګمانونو اټکلونو او اوهامو او چټي خبرو پسې چې هیڅ کار ورځنې نه جوړیږي، نه ګرځي.

فَأَعْرِضْ عَن مَّن تَوَلَّىٰ عَن ذِكْرِنَا وَلَمْ يُرِدْ إِلَّا الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ﴿٢٩﴾ ذَٰلِكَ مَبْلَغُهُم مِّنَ الْعِلْمِ ۚ

پس مخ وګرځوه ته له هغه چا څخه چې مخ یې ګرځولی دی له ذکره پنده ځمونږ. او نه لري اراده مګر خو د ژوندون لږ خسیس. دا (اختیارول د ده دنیا لره) ځای د رسېدلو د دوی دی له علمه پوهې (د دوی).

تفسیر: یعنې د هر چا پرستن او نالې چې د دنیا دا څو ورځې ژوندون دی، او په هغه کې هسې منهمك شي چې الله تعالی او آخرت ور څخه هېر وي، او هیڅ خپل فکر ورته نه نیسي؛ نو تاسې د دوی اپلتو او چټي (بېکاره) خبرو ته زیات مه متوجه کېږئ !، هم هغسې چې هغوی له الله تعالی څخه مخ اړوي، تاسې هم د هغوی له شرارت او بدۍ څخه مخ واړوئ !، د دوی علمي جداوجهد یواځې د بهائمو په شان د ګېډې ډکول او د شهوت شړل دي، پر ته له نفساني غوښتنو څخه بل شي ته نه متوجّه کیږي.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اهْتَدَىٰ ﴿٣٠﴾

بېشکه رب ستا همدی ښه عالم دی په هغه چا باندې چې ګمراه شوی دی له لارې د ده څخه (چې اسلام دی)، او همدی ښه عالم پوه دی په هغه چا باندې چې سمه لاره یې موندلې ده.

تفسیر: یعنې هغه چې په ګمراهۍ کې پروت دی، او هغه چې په سمې لارې باندې روان دی، دوی ټول سره د هغوی د مخفي استعداداتو له ازل راهیسې پاك الله ته معلوم او الله تعالی پرې ښه خبر دی، او سم له هغه سره هر کار کېدونکی دی، نو ځکه تاسې ځان یوې خوا ته ونیسئ، او د هغو معاندینو معامله الله تعالی ته خوشې کوئ او ور ویې سپارئ.

وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ أَسَاءُوا بِمَا عَمِلُوا وَيَجْزِيَ الَّذِينَ أَحْسَنُوا بِالْحُسْنَى ﴿٣١﴾

او خاص الله ته دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه چې په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکې ملکا وخلقًا وعبیدًا) (پیدایښت)، لپاره د دې چې جزاء ورکړي (الله) هغو

کسانو ته چې بدي يې کړي وي په (سبب) د هغه (بد) عمل چې کړی يې وي، او جزاء ورکړي هغو کسانو ته چې نيکي يې کړي وي په ښکو عملونو سره (په جنّت).

**تفسير:** يعنې د هر سړي احوال الله تعالی ته ښه معلوم دي، او د ځمکې او د اسمان پر هر شي باندې د هغه واک او قبضه ده، بيا نو د ښو او د بدو په بدل ورکولو کې د هغه په مخ کې څه ممانعت موجود کېدی شي، بلکه که په غور سره وګورئ؛ نو ځمکه او د اسمان دا ګردې کارخانې د همدې لپاره پيدا کړی شوي دي چې د هغو په نتيجه کې د ژوندون يوه بله غير فاني سلسله قائمه کړه شي، تر څو په هغې کې بدانو ته د هغوی د بدۍ او ښکانو ته د هغوی د ښېګی بدل ورکړ شي.

اَلَّذِيْنَ يَجْتَنِبُوْنَ كَبٰٓئِرَ الْاِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ اِلَّا اللَّمَمَ ؕ

(نيکو کاران) هغه کسان چې ځان ساتي له کبائرو لويو ګناهونو څخه، او له فواحشو قبيحو کارونو څخه، مګر وړې وړې ګناه (لکه نظر کول حرامو ته، او نور د دې په شان ښښل کيږي له جانبه د الله په سبب د اجتناب له کبائرو نه).

**تفسير:** د صغيرې او کبيرې فرق د «النساء» سورت په تفاسيرو کې په تفصيل سره تېر شوی دی، د (لمم) په تفسير کې څو خبرې شته، ځينې وايي: هغه خيالات او چرتونه دي چې د ګناه په نسبت په زړونو کې ګرځي، خو له قوې څخه فعل ته نه وځي؛ هغه لمم دی، ځيني له هغه څخه صغيره ګناه مرادوي، ځينې وايي: هغه ګناه چې په کولو باندې يې اصرار نه کوي، يا يې خپل عادت ونه ګرځوي، يا هغه ګناه چې توبه ورځنې وکړي مراد دی.

اِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ؕ

بېشکه رب ستا واسع (پراخ کوونکی د ښښنې او) د مغفرت دی.

**تفسير:** نو ځکه له ډېرو وړو وړو ګناهونو څخه تيرېږي او توبه قبلوي، او ګنهګاران نه مأيوس کوي، که په هره لويه او وړه ګناه باندې يې پوښتنه کولی؛ نو د اميد ځای به چېرې پاتې کېده؟.

هُوَ اَعْلَمُ بِكُمْ اِذْ اَنْشَاَكُمْ مِّنَ الْاَرْضِ وَاِذْ اَنْتُمْ اَجِنَّةٌ فِيْ بُطُوْنِ اُمَّهٰتِكُمْ ۚ فَلَا تُزَكُّوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ هُوَ اَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقٰى ﴿۳۲﴾

هغه ښه عالم دی په تاسې باندې کله چې پيدا يې کړئ تاسې له ځمکې څخه، او کله چې وئ تاسې (پټ) بچي په ګېډو د میندو خپلو کې؛ نو مه ستايئ مه پاکوئ تاسو ځانونه خپل، همدغه (الله) ښه عالم دی په هغه چا باندې چې ويرېږي (له الله او ځان ساتي له معاصيو).

**تفسير:** يعنې که د تقوی څه توفيق الله تعالی چاته ورکړي؛ نو دی دې لويي نه کوي !، او خپل ځان دې نه ستايي !، ځکه چې پاک الله د هر سړي له لويۍ او پاکۍ او تقوی نه په ښه شان خبردار دی، او له هغه وخته ورښکاره ده چې دوی لا د دې وجود او شتوالي په دائره کې قدم او پل نه وو ايښی.

اَفَرَءَيْتَ الَّذِيْ تَوَلّٰى ﴿۳۳﴾

آيا پس ليدلی دی تا هغه څوک چې مخ يې واړاوه (له ايمانه او مرتدّ شو).

تفسیر: یعنې خپل اصل يې هېر کړ، او د خپل اصلي خالق او حقيقي مالک له لوري يې مخ واړاوه.

وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى ﴿٣٤﴾

او ور يې کړ لږ شی (له مقرره مال څخه)، اومنع يې کړل نور (او سخت پرې ټينګ شو).

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «یعنې لږ څه ايمان يې راوړ، بيا يې زړه کلک شو»، مجاهد (رحمة الله عليه) او نور ليکي چې دا آيت د (وليد بن مغيره) په باره کې نازل شوی دی، چې هغه ځمونږ د پيغمبر لږ څه خبرې واورېدې، او د اسلام په لور يې لږ څه رغبت پيدا شو، او د کفر له سزا څخه ووېرېده، نژدې وو چې مسلمان شي، چې يوه کافر ته ووېل: داسې مه کوه! چې زه ستا ګرد جرائم پخپله غاړه اخلم، او ستا له لوري ګرده سزا زه په ځان تېروم، په دې شرط سره چې لږ څه مال ماته راکړې، هغه دا خبره ومنله، او د مقرر شوي رقم څه قسط يې هم ور ورساوه، او بيا يې انکار وکړه؛ نو په دې صورت سره د ﴿وَاَعْطٰى قَلِيْلًا وَّاَكْدٰى﴾ معنی به داسې کيږي: چې څه مال يې ورکړ او بيا يې لاس وويست.

اَعِنْدَهٗ عِلْمُ الْغَيْبِ فَهُوَ يَرٰى ﴿٣٥﴾

آيا شته له ده څخه علم د پټو (مخفي شيانو) پس دیويني (نجات خپل).

تفسیر: یعنې آيا دا د غيب خبر يې ليدلی دی چې هغه ته به د کُفر سزا نه رسيږي؟ او بل سړی به خپل ځای ودروي، او په رښتيا سره دی دی خلاصيږي؟.

اَمْ لَمْ يُنَبَّاْ بِمَا فِىْ صُحُفِ مُوْسٰى ﴿٣٦﴾ وَاِبْرٰهِيْمَ الَّذِىْ وَفّٰۤى ﴿٣٧﴾

آيا نه دی خبر کړی شوی دی په هغه (شي) چې وو په صحيفو پاڼو دموسی کې. او په (صحيفو پاڼو) دابراهيم کې هغه (ابراهيم) چې وفاء يې کړې وه (په احکامو د الله).

تفسیر: یعنې ابراهيم عليه السلام پخپله وينا او عهد او پيمان باندې پوره ټينګ ولاړ وو، او د الله تعالی ګرد احکام يې په ځای کړل، او د هغه د احکامو په تعميل کې يې لږ څه تقصير هم ونه کړ.

اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰى ﴿٣٨﴾

(په صحف مذکوره وو کې دا دي) چې نه پورته کوي هيڅ نفس پورته کوونکی بار ګناه د بل نفس.

تفسیر: یعنې د موسی او د ابراهيم عليه السلام په صحيفو کې داسې مضمون وو، چې د الله تعالی په مخکې يو مجرم د بل مجرم ګناه نشي اخيستی، او هر يو سړی خپل سوال او ځواب او ښه او خراب پخپله غاړه اخلي.

وَاَنْ لَّيْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰى ﴿٣٩﴾

او بله دا چې نشته هيڅ انسان لره مګر (جزا د هغه شي) چې کړی يې دی.

تفسیر: یعنې سړی چې هر څه پخپل زيار او کوښښ سره ګټي؛ هغه د ده دي، او هيڅوک د بل نيکي او بدي نشي اخيستی.

وَأَنَّ سَعْيَهُ سَوْفَ يُرَىٰ ۝ ثُمَّ يُجْزَاهُ الْجَزَاءَ الْأَوْفَىٰ ۝

او بېشکه (دا چې) جزا د سعي عمل د ده ژر ده چې وبه ښوولی شي (ده ته). بیا به جزاء ورکړی شي هغه ته جزاء پوره بدل ښه (د نېکۍ نېکه ـ د بدۍ بده).

تفسیر: یعنې د هر چا سعي او کوښښ به د هغه په مخ کې کېښود شي، او د هغه پوره پوره بدل به ورکاره کیږي.

وَأَنَّ إِلَىٰ رَبِّكَ الْمُنْتَهَىٰ ۝

او بېشکه (دا چې) رب ستا ته ده انتهاء د ګردو (مخلوقاتو پس له مرګه چې ورځي ورته لپاره د جزاء).

تفسیر: یعنې د ګردو علومو او افکارو سلسله او د وجود انتهاء د الله تعالی په لوري کیږي، او ټول شیان په پای کې هغه الله تعالی ته رجوع او ورتګ کوي، او د ده له مخې به هر چا ته د هغه د ښو او بدو ثمره ورکوله کیږي.

وَأَنَّهُ هُوَ أَضْحَكَ وَأَبْكَىٰ ۝ وَأَنَّهُ هُوَ أَمَاتَ وَأَحْيَا ۝ وَأَنَّهُ خَلَقَ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ ۝

او (دا چې) بېشکه همغه (الله) خندوي او ژړوي. او بېشکه همغه (الله) وژني او ژوندي کوي. او (دا چې) بېشکه همغه (الله) پیدا کړې یې دي جوړې نر او ښځه.

تفسیر: یعنې په دې نړۍ کې ګرد متضاد او متقابل احوال هغه لوی ذات پیدا کړي دي، د شر او د خیر خالق همغه الله تعالی دی، د خوښۍ او د غم کیفیّات د هغه په لاس کې دي، خندول، ژړول، لاربښوول، ګمراه کول، ژوندي کول او مړه کول، نر او ښځه پیدا کول او د دوی په شان نور شیان ټول د دې خالق له کارونو څخه دي.

مِنْ نُطْفَةٍ إِذَا تُمْنَىٰ ۝ وَأَنَّ عَلَيْهِ النَّشْأَةَ الْأُخْرَىٰ ۝

له یوه څاڅکي اوبو د (مني) څخه کله چې وڅڅاوه شي (په رحم کې). او (دا چې) بېشکه په ده باندې دي پیدا کول د دویم ځلي (پس له مرګه).

تفسیر: یعنې هغه ذات چې له یوه څاڅکي څخه یې نر او ښځه پیدا کړي دي، نو هغه ته بیا پیدا کول څه مشکل دي؟ د یوه پیدایش له ښوولو څخه یې په بل پیدایش باندې هم تنبیه وفرمایله.

وَأَنَّهُ هُوَ أَغْنَىٰ وَأَقْنَىٰ ۝

او (دا چې) بېشکه همغه (الله) غني کوي او خزانې ورکوي (یا خواروي).

تفسیر: یعنې مال، خزانه، جایدادونه ټول د هغه ښښنه ده، ځینې د (اقنی) معنی (افقر) اخلي، یعنې هغه ځینې غني کوي، او ځینې فقیر اکرب کوي، دا معنی له ړومبني سیاق سره مناسبه ښکاري، ځکه چې د متقابلو شیانو ذکر له اول تر آخره پورې راغلی دی، او که اول مطلب واخیست شي؛ نو د هغه په مقابل کې ښایي چې اهلاک کېښود شي، چې ذکر یې وروسته راځي، یعنې خزانې، مال، او دولت هغه ورکوي او زیاتوي یې، او همغه ډېر لوی دولتمندان او طاقتوران اقوام او ټبرونه تباه او بربادوي.

وَأَنَّهُۥ هُوَ رَبُّ ٱلشِّعْرَىٰ ﴿٤٩﴾

او (دا چې) بېشکه هم هغه (الله) رب د شِعری دی.

تفسیر: «شِعری» یو لوی ستوری دی، چې ځینو له اعرابو به د هغه عبادت کاوه، او داسې یې ګڼه چې د عالم په پېښو کې هغه ډېر تأثیر او اغېزه لري، دلته دا راښکاره کوي چې د «شِعری» رب هم الله تعالی دی، او د دنیا ګردې پېښې او لاندې باندې او نور د ده په لاس او واک کې دي، بې وځلې (شعری) هم لکه یو معمولي مزدور د هغه احکامو په ځای راوړلو کې زیار (کوښښ) کوي، او په هغه کې کوم مستقل تأثیر او اغېزه هیڅ نشته.

وَأَنَّهُۥٓ أَهْلَكَ عَادًا ٱلْأُولَىٰ ﴿٥٠﴾

او (دا چې) بېشکه همغه (الله) وژلي هلاک کړي دي عادیان ړومبی.

تفسیر: یعنې د هود علیه السلام قوم.

وَثَمُودَا۟ فَمَآ أَبْقَىٰ ﴿٥١﴾ وَقَوْمَ نُوحٍ مِّن قَبْلُ ۖ إِنَّهُمْ كَانُوا۟ هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغَىٰ ﴿٥٢﴾

او (هلاک کړي یې دي) ثمودیان، پس باقي یې پرې نه ښود بل هیڅوک (له هغوی نه). او (هلاک کړی یې دی) قوم د نوح پخوا له دوی نه، بېشکه چې دوی وو هم دوی ډېر ظالمان او ډېر سرکښان.

تفسیر: یعنې تر سلهاوو کلونو د الله تعالی رسول نوح علیه السلام ته یې هسې ډېر سخت ضررونه او ایذاوې رسولې چې د هغه له ویلو څخه د هر سړي زړه خوږېږي، او راتلونکیو لره یې بده لاره وپرانیستله.

وَٱلْمُؤْتَفِكَةَ أَهْوَىٰ ﴿٥٣﴾ فَغَشَّىٰهَا مَا غَشَّىٰ ﴿٥٤﴾

او هغو کلیو اړولیو شویو لره یې ښکته راوغورځول (ځمکې ته پس له پورته کېدو نه). پس راولوېد په هغه باندې څه چې راولوېد (یا پس پټ یې کړه هغه لره په هغه څه چې پټ یې کړل).

تفسیر: یعنې د تیږو باران او وریا یې پرې وکړه، دا د لوط علیه السلام د قوم یادونه ده.

فَبِأَىِّ ءَالَآءِ رَبِّكَ تَتَمَارَىٰ ﴿٥٥﴾

پس په کومو نعمتونو د رب خپل شک کوې ته (ای کافر انسانه؟).

تفسیر: یعنې د داسې مفسدانو، ظالمانو او باغیانو تباه کول او له منځه لرې کول او ورک کول هم د الله تعالی ډېر لوی انعام او ښېنه ده، آیا د داسې نعمتونو له لیدلو څخه وروسته هم انسان خپل الله تعالی ته د دروغو نسبت کوي.

هَٰذَا نَذِيرٌ مِّنَ ٱلنُّذُرِ ٱلْأُولَىٰٓ ﴿٥٦﴾

دغه (محمد رسول الله هم) ویروونکی دی له (جملې د) ویروونکیو ړومبنیو څخه.

تفسیر: یعنې محمد صلی الله علیه وسلم د مجرمانو د بد انجام څخه همداسې ویرول کوي، لکه چې له دوی څخه وړاندې نورو پیغمبرانو هم کفار ویرول.

اَزِفَتِ الْاٰزِفَةُ ﴿٥٧﴾ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ كَاشِفَةٌ ﴿٥٨﴾

را نژدې شو راتلونکی (قيامت). نشته هغه لره پرته له الله ښکاره کوونکی (راوستونکی).

**تفسير:** يعنې قيامت ډېر نژدې شوی دی، خو د هغه ټاکلی وخت پرته له الله تعالی بل څا ته په ښکاره ډول نه دی معلوم، او کله چې ټاکلی وخت يې راشي؛ نو هيڅ يو طاقت هغه نشي ستنولی، که الله تعالی اراده وفرمايي؛ د هغه په دفع باندې قادر دی، خو هغه يې هم نه لرې کوي.

اَفَمِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ تَعْجَبُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَتَضْحَكُوْنَ وَلَا تَبْكُوْنَ ﴿٦٠﴾ وَاَنْتُمْ سٰمِدُوْنَ ﴿٦١﴾

آيا پس له دې خبرې (قرآن) څخه تعجّب کوئ تاسې (انکارًا ای منکرانو). او خاندئ تاسې (تمسخُرًا) او نه ژاړئ (خوفًا. او تاسې غافلان يئ (له هغه شي چې مطلوب دی تاسې ته) چټې (بېکاره) لوبې کوئ.

**تفسير:** يعنې قيامت او د هغه نژدېوالی د خبر له اورېدلو څخه بايد چې تاسې د الله تعالی له وېرې په ژړا کېدئ او يرېدئ، او د خپلې ژغورنې تياری به مو کاوه، مګر تاسې په خلاف د هغه تعجّب کوئ او خاندئ، او په غفلت او بېفکری کې په چټې لوبو کې اخته يئ.

فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا ﴿٦٢﴾ السجدة

پس سجده کوئ تاسې (خاص) الله ته، او عبادت کوئ د همدغه (الله !، نه د نورو).

تفسير: يعنې يو عاقل او پوه لره نه ښايي چې له انجامه غافل شي، او په پند، نصيحت او پوهولو باندې ټوکې او مزاح وکړي او پرې وخاندي، بلکه ښايي چې د بندګی لاره غوره کړئ !، او مطيع او منقاد اوسئ !، د عاجزې او نياز وچولی د الله تعالی په دربار کې کېږدئ !.

**تنبيه:** په روايتونو کې راغلي دي چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم کله چې د (النجم) سورت ولوست، دی پخپله هم په سجده پرېوت، او نورو ګردو مسلمانانو او مشرکانو هم چې هلته حاضر وو؛ سجده وکړله.

تمّت سورة النجم، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُوْرَةُ الْقَمَرِ

«د (القمر) سورت مکّي دی، ماسوا له (۴۴، ۴۵، ۴۶) آیتونو څخه چې مدني دي، (۵۵) آیته (۳) رکوع لري، په تلاوت کې (۵۴) او په نزول کې (۳۷) سورت دی، وروسته د «الطارق» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اِقْتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانْشَقَّ الْقَمَرُ ①

را نژدې شو قیامت او څیري دوه ټوټې شوه سپوږمی.

تفسیر: له هجرت څخه پخوا رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په (منا) کې تشریف درلود، د کافرانو یوې لویې جرګې له دوی څخه یوه معجزه وغوښته، دوی وفرمایل چې: د اسمان په لوري وګورئ ! ناڅاپه سپوږمی له منځه دوه ټوټې شوه، یوه ټوټه یې د لمر خاته په لوري، او بله ټوټه یې د لمر پرېوتو په لوري لاړه، په منځ کې یې غر حائل وو، کله چې د کافرانو جرګې دا لویه معجزه ولیده؛ سره یې وویل چې: «محمد صلی الله علیه وسلم پر مونږ یا پر سپوږمی باندې سحر جادو کوډې کړې دي»، دغې معجزې ته (شقّ القمر) وایي، او دا یوه نمونه یا نښه وه د قیامت چې وروسته له دې څخه به هر شی لکه دا شلیږي او چوي، طحاوي او ابن کثیر اونورو د دې واقعې د تواتر دعوی کړېده، او له کوم عقلي دلیل سره تر اوسه پورې د هسې واقعاتو محال کېدل نشي ثابت کېدی، او یواځې د استبعاد په بناء داسې قطعي الثبوت شیان نه شي تردید کېدی، بلکه استبعاد خو اعجاز لره لازم دی.

وَاِنْ يَّرَوْا اٰيَةً يُّعْرِضُوْا وَيَقُوْلُوْا سِحْرٌ مُّسْتَمِرٌّ ②

او که ویني دغه (کُفّار د قریشو) کوم دلیل (د قدرت) نو پر ځنګ به شي دوی (مخ به واړوي) ترې، او وایي به دوی (دغه) سحر کوډې دي قوي چې له پخوا راهیسې راځي.

تفسیر: یعنې پخوا له دې هم د نبوّت دعوی کوونکیو د داسې سحر او کوډو دعاوی کړې دي، هم هغسې چې هغه تللي دي؛ دا به هم ځي.

وَكَذَّبُوْا وَاتَّبَعُوْٓا اَهْوَآءَهُمْ وَكُلُّ اَمْرٍ مُّسْتَقِرٌّ ③

او دروغجن ګڼي دوی (حق لره)، او متابعت کوي دوی د خواهشونو خپلو، او هر کار قرار نیوونکی دی (سره له کوونکي خپل په نعیم یا جحیم کې).

تفسیر: یعنې د هغوی عذاب هم په خپل وخت باندې راتلونکی دی، او هغوی لره هغه هلاکت او ګمراهي چې د الله تعالی په علم کې ټاکلې شوې ده؛ هیڅ وړاندې وروسته کېدونکې نه ده.

وَلَقَدْ جَآءَهُمْ مِّنَ الْاَنْبَآءِ مَا فِيْهِ مُزْدَجَرٌ ④

او خامخا په تحقیق راغلي دي دوی ته خبرې او اهلاک د پخوانیو امتونو هغه شی چې په هغه کې امتناع او سرزنش وو (له کفره).

**تفسیر:** یعنې د قرآنکریم په وسیله هر راز احوال او د تباه شویو قومونو واقعات دربشکاره شوي دي، که په هغو باندې غور وکړئ؛ نو د الله تعالی له لوري لویه تنبیه او ویښول دي.

راغلي دي دغو منکرانو ته دغسې پند چې:

حِكْمَةٌ بَالِغَةٌ فَمَا تُغْنِ النُّذُرُ ﴿٥﴾ فَتَوَلَّ عَنْهُمْ

حکمت دی کامل نهایت ته رسېدلی، پس هیڅ نفع نه رسوي (دوی ته) ویروونکي (انبیاء، قرآن، مواعظ). نو مخ وګرځوه ته له هغوی څخه.

**تفسیر:** یعنې قرآن مجید د پوره عقل او حکمت د خبرو مجموعه ده، که څوک یې په ښه نیت او پوره توجّه سره ولولي؛ نو په زړونو کې یې ځای نیسي او په کې لویږي، مګر د افسوس ځای دلته دی چې سره د دومره لارښوونې او د هدایت د اسباب د شتو بیا هم دوی هدایت نه مومي، او په سمه لاره نه راځي، نو ځکه د هسې غښو زړونو او سنګدلو بدبختانو په فکر کې ډېر زیات مه اوسېږه، تاسو د خپل تبلیغ فرض او د دعوت وظیفه او دنده په ښه شان او سلوک سره اداء وفرمایئ، اوس نو د زیات تعاقُب ضرورت نشته، پرېږدئ چې هغوی د خپلې هستوګنې د ځای په لورې ور درومي.

يَوْمَ يَدْعُ الدَّاعِ إِلَىٰ شَيْءٍ نُّكُرٍ ﴿٦﴾

(او یاده کړه هغه) ورځ چې رابولي (دوی لره) بلونکی یو شي ناآشنا ته (چې حساب او جزاء د اعمالو ده).

**تفسیر:** یعنې د حشر د ډګر به لوري د شمېر (حساب) ورکولو لپاره.

خُشَّعًا أَبْصَارُهُمْ

حال دا چې ویرېدونکي خړې خوارې به وي سترګې د دوی.

**تفسیر:** یعنې په هغه وخت کې به یې د خوف او ندامت لامله په ډېر ذلت او ندامت سره سترګې ځوړې او مړې وي، او له ډېره شرمه به ځمکې ته ګوري.

يَخْرُجُونَ مِنَ الْأَجْدَاثِ كَأَنَّهُمْ جَرَادٌ مُّنتَشِرٌ ﴿٧﴾ مُّهْطِعِينَ إِلَى الدَّاعِ ۖ

راوځي به دوی له قبرونو څخه ګواکې دوی به ملخان وي خواره واره. چې تلوار کوونکي به وي په لوري د بلونکي خپل.

**تفسیر:** یعنې ګرد ړومبني او وروستني خلق به له خپلو قبرونو څخه ووځي، اود ملخانو په ډول سره به په ځمکه کې تیت پیت او خواره شي، او د الله تعالی په مخ کې به د خپلو چارو د جزاء لپاره په ډېر تلوار سره حاضرېږي.

يَقُولُ الْكَافِرُونَ هَٰذَا يَوْمٌ عَسِرٌ ﴿٨﴾

وایي به کافران دا ورځ ده ډېره سخته.

**تفسیر:** یعنې د هغې ورځې د ویروونکیو احوالو او شدائدو لامله او د خپلو جرائمو له تصوّره به کفار داسې ووایي، چې دا بده سخته ورځ ده، وبه لیده شي چې نن به څه را باندې تیرېږي، وروسته دا راښیي چې قیامت او د

آخرت عذاب پخپل وخت باندې راتلونکی دی، ډېرو دروغجنانو ته له هغه څخه پخوا په دنیا کې هم یوه سخته ورځ په مخ راغلې ده.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ فَكَذَّبُوا عَبْدَنَا وَقَالُوا مَجْنُونٌ وَازْدُجِرَ ﴿٩﴾

دروغجن ګڼلي دي پخوا له دوی څخه قوم د نوح (نوح علیهم علیه السلام)، نو دروغجن وشمېرو دوی بنده ځمونږ، او ویې ویل چې: (دغه نوح) لېونی دی او منع کړی شوی دی (له دعوت د خلقو نه).

تفسیر: کُفّارو به تهدیدًا ویل: ای نوحه ! که ته له خپلو هسې خبرو څخه نه اوړې، نو مونږ به دې تر ډېرو لاندې کړو ! ګواکې په داسې ویرولو سره یې د هغوی خبرو ته غوږ نه نیوه، او د ده خبرې به توی تللې، ځینې د ﴿وَازْدُجِرَ﴾ معنی داسې کوي چې: لېونی یا بادسار یا رنځور دی، او سد (هوش) او عقل ترې ورک، (العیاذ بالله).

فَدَعَا رَبَّهُ أَنِّي مَغْلُوبٌ فَانْتَصِرْ ﴿١٠﴾

پس دعا سوال وکړ (نوح) له ربه خپله (داسې چې) بېشکه زه مغلوب عاجز شوی یم، نو بدل مې واخله (له کُفّارو).

تفسیر: یعنې له سلهاوو کلونو پوهولو سره هم کله چې څوک د دوی په خبرو باندې ونه پوهېدل، نو دوی هغوی ته ښېرې وفرمایلې، او ویې ویل: «ای ربه ! زه اوس د دوی له لاربښوونې څخه عاجز شوی یم، پر دوی باندې ځما هدایت او لاربښوونې هیڅ اغېزه او اثر ونه کړ، اوس نه ته د خپل دین او پیغمبر بدل او کسات واخله !، او پر ځمکه باندې هیڅ یو کافر ژوندی مه پرېږده !».

فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُنْهَمِرٍ ﴿١١﴾ وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا فَالْتَقَى الْمَاءُ عَلَىٰ أَمْرٍ قَدْ قُدِرَ ﴿١٢﴾

نو وپرانیستل مونږ ورونه د اسمان په اوبو ډېرو راتوېې شویو سره (له اسمانه). او وبهولې مونږ له ځمکې څخه (هم) چینې، بیا سره ګډې شولې ټولې اوبه (د اسمان او د ځمکې) په هغه کار باندې چې ټاکلی مقرر شوی وو (چې اهلاک د قوم د نوح وو).

تفسیر: یعنې اوبه داسې سختې راوشوږېدې لکه چې د اسمان ګرد ورخونه خلاص شوي دي، او لاندې د ځمکې ټولې اوبه هم له یوې مخې دباندې راخوټېدلې دي، او دومره زیاتې اوبه راووتې، لکه چې د ځمکې مخ د لویو چینو یوه مجموعه شوه، بیا د لاندې او د باندې او دا دواړه اوبه سره ګډې شوې د هغه کار لپاره حاضرې شوې چې د الله تعالی له خوا لا پخوا له هغه ټاکلی (مقرّر) شوی وو، یعنې د نوح علیه السلام د قوم تباهي، هلاکت او ډوبېدل.

وَحَمَلْنَاهُ عَلَىٰ ذَاتِ أَلْوَاحٍ وَدُسُرٍ ﴿١٣﴾ تَجْرِي بِأَعْيُنِنَا

او سور کړی وو مونږ دغه (نوح) پر (بېړۍ چې) خاوندە د تختو پلنو او میخونو پریړو (غټو) وه. چې تلله ګرځېده ځمونږ د سترګو لاندې چې مو لیده او څارنه مو ورله کوله.

تفسیر: یعنې د دې ویروونکي طوفان په وخت کې د نوح علیه السلام بېړۍ ځمونږ د سترګو تر کتنې حفاظت او نګرانۍ لاندې وه، او په ډېره هوسایۍ او آرامۍ سره د اوبو په سر ګرځېده.

جَزَآءً لِّمَن كَانَ كُفِرَ ﴿١٤﴾

(واقع شوی وو دا طوفان) لپاره د امداد د هغه چا چې کُفران د احسان یې کړی شوی وو (چې نوح دی).

**تفسیر:** یعنې کفّارو د نوح علیه السلام بې قدري وکړه، او الله تعالی د خبرې له منلو څخه یې مخ واړاوه، دا وه د هغه سزا او انتقام چې د لوی طوفان او سخت څپان په ډول ورورسېده.

وَلَقَد تَّرَكْنَاهَا آيَةً فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿١٥﴾

او خامخا په تحقیق پرېښودله مونږ دغه (بېړۍ) یو دلیل (د قدرت خپل)، نو آیا شته څوک یادوونکی پند اخیستونکی.

**تفسیر:** یعنې فکر کوونکي لره په دې واقعې کې د قُدرت ډېر دلائل او د عبرت زیاتې نښې دي، یا یې دا مطلب چې نن د کشتۍ وجود په دنیا کې هغه قصه راپه یادوي او د الله تعالی د لوی قدرت لویه نښه ده.

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٦﴾

پس څرنګه وو عذاب ځما (په دوی چې مې هلاک کړل ټول په طوفان) او ویرول ځما (په ژبې د نوح)؟.

**تفسیر:** یعنې ځما عذاب یې ولید، چې څومره ویروونکی دی، او ځما ډارول څومره په ځای او رښتیا دي.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿١٧﴾

او خامخا په تحقیق اسان کړی دی مونږ قرآن لپاره د یادولو او پند اخیستلو، نو آیا شته څوک یادوونکی پند اخیستونکی.

**تفسیر:** یعنې له قرآنه پند اخیستل ډېر اسان دي، ځکه هغه مضامین چې د ترغیب، ترهیب، انذار، تبشیر او نورو په نسبت دي؛ هغه ګرد بالکل صاف، سهل، ساده او اسان دي، او مؤثر دي، او دومره سهل او صاف دي چې هر سړی په لږ فکر او غور سره پرې پوهیږي.

كَذَّبَتْ عَادٌ فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿١٨﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا صَرْصَرًا فِي يَوْمِ نَحْسٍ مُّسْتَمِرٍّ ﴿١٩﴾

دروغجن ګڼلی وو عادیانو (هود)، نو څرنګه وو عذاب ځما او ویرول ځما؟. بېشکه مونږ لېږلی وو مونږ پر دوی باندې باد ډېر سخت په ورځې نحسې (د بدۍ) کې چې تل وي بدي یې (پر دوی باندې چې په کې هلاک شو).

**تفسیر:** شاه صاحب لیکی: «یعنې بدي او نحوست پورته نه شو، تر څو ګرد سره تمام نه شول، او دا د نحوست ورځ هغوی لره وه نه تل»، په قرآنکریم کې تصریح شوې ده چې هغه عذاب اووه شپې او اته ورځې پرله پسې وو.

تَنزِعُ النَّاسَ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنقَعِرٍ ﴿٢٠﴾

چې را ایستل به (باد له پټو ژورو کندو د ځایونو خپلو نه) خلق ګواکې دوی تنې د خرماوو وي چې له بېخه رایستلې شوې په ځمکه پرېوتلې وي.

تفسیر: د عاد قوم ډېر پیاوړی قوي او د لویو جثو او ونو خاوندان وو، خو دوی د دې سخت باد او د لویې سیلۍ له وړاندې داسې سره په ځمکه راولوېدل، لکه چې د کجورو ونې چې له سټه او بېخه وویستلی شي، او هغه خوا وغورځولی شي.

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٢١﴾ وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٢٢﴾ كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِالنُّذُرِ ﴿٢٣﴾

نو څرنګه وو عذاب زما او ویرول زما (له بېخه ایستل مې)؟. او خامخا په تحقیق اسان کړی دی مونږ قرآن ذکر پند اخیستلو ته، نو آیا شته څوک یادوونکی پند اخیستونکی. دروغجن ګڼلي وو ثمودیانو (انبیاء او نور) ویروونکي.

تفسیر: یعنې صالح علیه السلام یې دروغجن شمېرلی وو، او حال دا دی چې یوه نبي دروغجن بلل عیناً د ټولو پیغمبرانو دروغجن بلل دي، ځکه چې د دین په اصولو کې دوی ګرد یو، د بل مصدقان او مؤیدان دي.

فَقَالُوا أَبَشَرًا مِّنَّا وَاحِدًا نَّتَّبِعُهُ إِنَّا إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿٢٤﴾

پس وویل دوی آیا یو بشر لره له مونږ څخه چې یو دی؛ متابعت وکړو (مونږ چې ډېر یو) ده لره؟ بېشکه مونږ په دغه وخت کې خامخا به یو په ګمراهۍ او لېونتوب کې (نو نه یې کوو متابعت).

تفسیر: یعنې دغه خو کومه اسماني پرښته نه دی، بلکه مونږ غوندې یو سړی دی، هغه هم یو بېکس او یواځې چې هیڅ قوت او ملګرې ورسره نشته، دی غواړي چې مونږ راښکته او د خپل ځان تابع وګرځوي، او حال دا دی چې دا کار له سره هیڅ کېدونکی نه دی، که مونږ د ده په خبرو باندې وغولېږو، او د ده په لومه کې بند شو؛ نو دغه به ځمونږ سخته غلطي ناپوهي او حماقت څرګند کړي، بلکه دا کار به له لېونتوب سره سم وي.

ءَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِن بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ﴿٢٥﴾

آیا غورځولی شوی دی ذکر وحي په ده باندې په منځ ځمونږ (نه ده شوې وحي)؟ بلکه دی ډېر دروغجن متکبّر دی (چې پخپله ځان غټوي).

تفسیر: یعنې پیغمبرۍ ته د نورو خلقو په منځ کې یواځې همدغه پاتې وو؟ ګردې خبرې یې دروغ دي، او خامخا ځای لوی راښیي، تکبّر کوي او وایي چې: زه د الله تعالی له لوري استاځی او پیغمبر یم، او ګرد قوم ته ښایي چې زما خبرې ته غوږ کیږدي، او اطاعت مې وکړي، او حکم مې ومني، نو تردیداً فرمایي الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُه داسې چې:

سَيَعْلَمُونَ غَدًا مَّنِ الْكَذَّابُ الْأَشِرُ ﴿٢٦﴾

ژر ده چې پوه به شي دوی صباح (په وخت د نزول د عذاب کې، یا په ورځ د قیامت کې) چې څوک دی هغه ډېر دروغجن متکبّر.

تفسیر: یعنې ډېر ژر معلومېږي چې د دې دواړو په منځ کې دروغجن او متکبّر څوک دی؟.

إِنَّا مُرْسِلُو النَّاقَةِ فِتْنَةً لَّهُمْ

بېشکه مونږ لېږونکي یو د اوښې لپاره د فتنې ازمویښت د دوی.

**تفسیر:** یعني د هغوی له غوښتني سره سم مونږ له تیرې څخه اوښه را وویسته، او ور ومو لېږله، او د هغې په وسیله مو دا په عملي ډول هم ښکاروله چې له هغوی څخه کوم یو د الله تعالی او د هغه د رسول خبرې مني؟ او کوم یو د خپل نفس په غوښتنې کار کوي؟.

فَارْتَقِبْهُمْ وَاصْطَبِرْ ﴿۲۷﴾ وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ ﴿۲۸﴾

پس منتظر اوسه ته (ای صالح !) دوی ته او صبر وکړه (یعني وګوره ! چې څه نتیجه راووځي؟).
او خبر کړه دوی (په دې) چې بېشکه اوبه ویشلې شوي دي په منځ د دوی (او د اوښې) کې، هر وار د اوبو ته حاضر کړی شوي دي (خاوندان د اوبو پخپل وار).

**تفسیر:** شاه صاحب لیکي: هغه اوښه به په هر وار چې اوبو ته تله؛ نور څاروي او حیوانات به له هغې څخه ویرېدل او لرې به تښتېدل، نو د الله تعالی له لوري وار او نوبت مقرّر شو، چې یوه ورځ به هغې اوښې اوبه څښلې، او بله ورځ به نورو حیواناتو.

فَنَادَوْا صَاحِبَهُمْ فَتَعَاطَىٰ فَعَقَرَ ﴿۲۹﴾

نو راوباله دوی ملګری خپل (لپاره د وژلو د اوښې؛ نو توره یې واخیسته) پس پرې یې کړې پښې (د هغې اوښې او مړه یې کړه).

**تفسیر:** شاه صاحب لیکي: «یوه بدکاره ښځه وه چې حیوانات یې ډېر وو، هغې خپل یو آشنا ولمساوه، او هغه د دې اوښې پښې پرې کړې، او ویې وژله، نو پس له درېو ورځو نه پرې عذاب نازل شو».

فَكَيْفَ كَانَ عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿۳۰﴾ إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ صَيْحَةً وَاحِدَةً فَكَانُوا كَهَشِيمِ الْمُحْتَظِرِ ﴿۳۱﴾

پس څرنګه وو عذاب زما او ویرول زما. بېشکه مونږ ولېږه مونږ پر هغو باندې غږ یو (د جبریل)؛ نو شول دوی لکه وچ مات شوي (ټوټې ټوټې خس خاشاک واښه شپول جوړوونکي).

**تفسیر:** یعني پرښتې یوه سخته کربکه وکړه، چې د هغې لامله د هغو ګردو زړونه وچاودل، او ټول سره هک پک او حیران پاتې شول، او هسې راوبر ښنېدل، لکه چې د وښو یوه لویه کوټه د څاروو تر پښو لاندې غوبل شوي وي، او ګرد سره ګوډ او مات او چیت او بوس بوس شوي وي.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿۳۲﴾ كَذَّبَتْ قَوْمُ لُوطٍ بِالنُّذُرِ ﴿۳۳﴾

او خامخا په تحقیق اسان کړی دی مونږ قرآن لپاره د ذکر یادلو پند اخیستلو؛ نو آیا شته څوک یادوونکي پند اخیستونکي؟. دروغجن کړي وو قوم د لوط ویروونکي (انبیاء لره).

**تفسیر:** یعني دوی لوط علیه السلام ته دروغجن وویل، او په داسې کار سره چې د یوه نبي تکذیب یې وکړ، ګواکې د ګردو انبیاوو تکذیب یې وکړ، یا قوم د لوط دروغجن وګڼه لوط په ویرولو او پند ورکولو د ده سره دوی لره.

إِنَّا أَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ حَاصِبًا إِلَّا آلَ لُوطٍ نَّجَّيْنَاهُم بِسَحَرٍ ﴿۳۴﴾ نِّعْمَةً مِّنْ عِندِنَا كَذَٰلِكَ نَجْزِي مَن شَكَرَ ﴿۳۵﴾

بېشکه مونږ لېږلې وو مونږ پر دوی باندې باد کاڼي ویشتونکی مګر کورنی د لوط، ومو ژغورل دوی په پېشمنې کې. له جهته د مهربانی له نزده څمونږ، همداسې (د آل لوط په شان) جزاء ورکوو مونږ هغه ته چې شُکر وباسي حق منونکی وي.

تفسیر: یعنې لوط علیه السلام په پښمنۍ کې له خپلو کورنیو سره روغ رمټ ووتلو، او هغوی ته هیڅ ربړ او عذاب ونه رسېد، او ځمونږ عادت همداسې دی چې حق پېژندونکیو او شکر ویستونکیو بندګانو ته هسې جزا ورکوو.

وَلَقَدْ أَنذَرَهُم بَطْشَتَنَا فَتَمَارَوْا بِالنُّذُرِ ﴿٣٦﴾

او خامخا په تحقیق ویرولي وو (لوط) دوی لره له نیولو ځمونږ څخه، نو شک وکړ دوی په ویرولو (د هغه کې).

تفسیر: یعنې د هغو په خبرو کې به یې چټي ویناوې شبهې جګړې کولې، او هغه به یې دروغجن ګڼلو (په ویلو د ده کې).

وَلَقَدْ رَاوَدُوهُ عَن ضَيْفِهِ فَطَمَسْنَا أَعْيُنَهُمْ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٧﴾

او خامخا په تحقیق غوښتي وو دوی له دغه (لوط څخه) مېلمانه د هغه (بدکارۍ ته)؛ نو محو ړندې کړې مونږ سترګې د دوی، پس (وفرمایل الله دوی ته په ژبه د ملائکو چې) وڅکئ تاسې ثمر د عذاب ځما، او د ویرولو ځما.

تفسیر: پر هغو پرښتو باندې چې د ښکلیو هلکانو په اشکالو کې راغلې وې، دوی د انسانانو ګمان کړی او د خپلو بدو اخلاقو او بدو رشو په غوښتنه پر دوی باندې د لاس اچولو په فکر کې شول، نو مونږ هغوی ړانده کړل چې هر لوري ته ګرځېدل، او له هر شي سره لګېدل، او هیڅ شی به هغو ته نه ښکارېده، نو ورته ومو ویل چې: ړومبی تاسې د دې عذاب خوند وڅکئ !.

وَلَقَدْ صَبَّحَهُم بُكْرَةً عَذَابٌ مُّسْتَقِرٌّ ﴿٣٨﴾ فَذُوقُوا عَذَابِي وَنُذُرِ ﴿٣٩﴾

او خامخا په تحقیق راغلی وو دوی ته په وقت د صباح کې عذاب چې ثابت قرار نیوونکی وو (په دوی باندې). نو (وفرمایل الله دوی ته په ژبه د ملائکو چې) وڅکئ تاسې ثمره د عذاب ځما او د ویرولو ځما.

تفسیر: یعنې له ړندولو څخه وروسته مو د هغوی کلي واړول، او پر دوی باندې مې له پاسه تیږي وورولې، له هغه وروکي عذاب څخه وروسته دا لوی عذاب وو چې پر دوی باندې له پاسه د صباوون په وخت کې راولوېد.

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ ﴿٤٠﴾ وَلَقَدْ جَاءَ آلَ فِرْعَوْنَ النُّذُرُ ﴿٤١﴾

او خامخا په تحقیق اسان کړی دی مونږ قرآن لپاره د ذکر یادولو پند اخیستلو، نو آیا شته څوک یادوونکی پند اخیستونکی؟. او خامخا په تحقیق راغلي وو (فرعون او) قوم د فرعون ته ویروونکي.

تفسیر: موسی او هارون علیهما السلام او د هغوی ویروونکې نهه مشهورې معجزې.

كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا فَأَخَذْنَاهُمْ أَخْذَ عَزِيزٍ مُّقْتَدِرٍ ﴿٤٢﴾

دروغجن وګڼل هغوی آیتونه ځمونږ ټول، نو ونیول مونږ دوی په نیولو د ذات ډېر غالب او قادر سره.

تفسیر: یعنې د الله تعالی نیول زبردست نیول دي، چې د هغه له لاسه هیڅوک چېرې نشي تښتېدلی، لکه چې د فرعونیانو ګرد لاولښکر یې سره له فرعون د قُلزم په بحیره کې هسې ډوب کړل چې یو تن هم د هغو له منځه خلاص نشو.

أَكُفَّارُكُمْ خَيْرٌ مِّنْ أُولَٰئِكُمْ أَمْ لَكُم بَرَاءَةٌ فِي الزُّبُرِ ﴿۴۳﴾ أَمْ يَقُولُونَ نَحْنُ جَمِيعٌ مُّنتَصِرٌ ﴿۴۴﴾

آيا كفّـار ستاسې (اى عربـو !) غـوره دي له ړومبنيو (كُفّارو) د تاسې څخه يا تاسې ته (حكم) د خلاصى دى په (ړومبنيو) كتابونو كې. آيا وايي دوى (چې) مونږ يو ټولې مرستې (مدد) كوونكي يو له بل سره، بدل اخيستونكى؟.

**تفسير:** الله تعالى د ړومبنيو قومونو قصه اوروي، او د هغې په منځ كې موجوده وو خلقو ته خطاب كوي چې آيا له دې موجوده وو كافرانو څخه پخواني كاڼران كم قوّته او كم شوكته وو؟ يا دوى له هغوى څنې قوي او ښه دي؟ كله چې مونږ هغو تېرو كافرانو ته د هغوى د كفر او طغيان په سزا كې تباهي وركړه؛ نو آيا د دوى تباهي كومه سخته خبره ده؟ يا دوى ته د الله تعالى له لوري كوم ليكلى امر وركړى شوى دى، چې هومره مو چې زړه غواړي؛ شرارت او سركښې وكړئ، تاسې ته هيڅوك سزا نه دركوي، يا يې داسې ګڼلي او ټاكلي دي چې څمونږ مجمع او ټولنه ډېره لويه ده، مونږ به يو له بل سره مرستې كوو، او ګرد به په دې وسيله له سزا څخه ځانونه ساتو، او هيڅوك به نه پرېږدو چې څمونږ په مخ كې بريالي شي، نو فرمايي الله جل جلاله:

سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ ﴿۴۵﴾

ژر ده چې ماته به كړه شي جمع (د دوى)، او وبه ګرځوي دوى شاوې خپلې (مسلمانانو ته له جنګه).

**تفسير:** يعنې ژر ده چې دوى ته به د هغوى د دې مجمع حقيقت ورښكاره شي، او د مسلمانانو په منځ كې به ماتې ومومي، او شا به وګرځوي، لكه چې په بدر، احزاب او نورو غزاګانو كې دغه وړاندوينه راښكاره شوه، په دې وخت كې څمونږ د لوى استاځي پـه ژبه دا آيت جاري وو: ﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ﴾.

بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ ﴿۴۶﴾

(دغه قتل او ماتې كافي نه ده دوى ته) بلكه قيامت دى وخت ځاى د وعدې (د عذاب) د دوى، او قيامت ډېر سخت دى (چې نه لري هيڅ علاج) او ډېر تريخ دى (له عذابه د دنيا نه).

**تفسير:** يعنې دلته به څه ماتې ومومي، د دوى اصلي ماتې به په هغه وخت كې وي چې قيامت په سر راودرېږي، او هغه به د سخت مصيبت وخت وي.

إِنَّ الْمُجْرِمِينَ فِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ﴿۴۷﴾ يَوْمَ يُسْحَبُونَ فِي النَّارِ عَلَىٰ وُجُوهِهِمْ ذُوقُوا مَسَّ سَقَرَ ﴿۴۸﴾

بېشكه ګناهګاران په ګمراهۍ كې دي او په اور ګرم (د دوزخ او لېونتوب) كې دي. هغه ورځ چې راكش كړل به شي دوى په اور (د دوزخ) كې په مخونو د دوى (وبه ويل شي دوى ته زجرًا چې) وڅكئ تاسې (مزه) د مس كولو رسېدلو (د اور) د دوزخ.

**تفسير:** يعنې په هغه وخت كې د غفلت لامله هك پك او حيران پاتې كيږي، او دا سودا يې هلته له ككرۍ څخه راووځي، چې په زېړو سترګو او مات اورمېږه د دوزخ په اور كې راښكوولى شي، او وبه ويل شي دوى ته زجرا د ملائكو په ژبه چې: «واخلئ ! اوس لږ څه د دې ګرم اور مزه هم وڅكئ !».

إِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ ﴿۴۹﴾

بېشكه مونږ هر شى پيدا كړى مو دى په (ړومبني ازلي) اندازه سره.

تفسير: هر راتلونکی شی لا له پخوا څخه د الله تعالی په علم کې شته، او کټمټ (هو بهو) هم هغسې ليکلی شوی دی، او له هغه څخه هيڅ يو شی وړاندې وروسته کېدونکی نه دی.

وَمَآ اَمۡرُنَآ اِلَّا وَاحِدَةٌ كَلَمۡحٍۭ بِالۡبَصَرِ ۝٥٠

او نه دی امر ځمونږ (يو شي لره چې اراده مو کړې ده د هغه د پيدا کولو) مګر (امر) يو ځل لکه رپول د سترګو.

تفسير: يعنې د سترګو په رپولو کې د هر څيز اراده چې الله تعالی وفرمايي، هم هغسې کوي، الله تعالی ته د يوه شي په جوړولو يا د يوه څيز په ورانولو کې هيڅ ځنډ نه واقع کيږي، او نه څه ربړ او مشقت ورپېښيږي.

وَلَقَدۡ اَهۡلَكۡنَآ اَشۡيَاعَكُمۡ فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ ۝٥١

او خامخا په تحقيق هلاک کړي دي مونږ مشابه نظائر ستاسې (له سابقه وو امتونو)، نو آيا شته څوک يادوونکي پند اخيستونکي؟.

تفسير: يعنې تاسې غوندې ډېر کافران مو تباه کړي دي، نو په تاسې کې دغسې کوم فکر کوونکی نشته چې د هغو له احواله عبرت واخلي، او په صدق سره ايمان راوړي؟.

وَكُلُّ شَيۡءٍ فَعَلُوۡهُ فِي الزُّبُرِ ۝٥٢

او هر هغه شی چې کړی دی هغوی (ليکلی شوی دی) په (پاڼو د اعمالنامو د دوی او په) لوح محفوظ کې.

تفسير: يعنې هر يو نېک او بد عمل وروسته له کولو څخه د هغوی په اعمالنامو کې ليکلی کيږي، او د پوښتنې په وخت کې دا ګرد کاغذونه او دفترونه وروړاندې کيږي.

وَكُلُّ صَغِيۡرٍ وَّكَبِيۡرٍ مُّسۡتَطَرٌ ۝٥٣

او هر وړوکی او لوی (عمل که خير وي که شر وي) ليکلی شوی دی (په لوح محفوظ کې).

تفسير: يعنې پخوا له دې څخه د هر وړوکيو او لويو شيانو تفصيل په لوح محفوظ کې ليکلی شوی دی، او ګرد دفترونه يې په منظم ډول سره مرتّب دي، تر دې چې ډېر يو وړوکی شی هم له قلمه نه دی لوېدلی.

اِنَّ الۡمُتَّقِيۡنَ فِيۡ جَنّٰتٍ وَّنَهَرٍ ۝٥٤ فِيۡ مَقۡعَدِ صِدۡقٍ عِنۡدَ مَلِيۡكٍ مُّقۡتَدِرٍ ۝٥٥

بېشکه ويريدونکي (پرهېزګاران) به په جنتونو کې وي او په ويالو کې وي (چې څکي له اوبو، شرابو، شاتو، شودو د هغو). په مجلس (حق) رښتيا (د جنّت) کې په نزد د باچا لوی قدرت لرونکي (چې هيڅوک يې نشي عاجزولی).

تفسير: وروسته له مجرمينو څخه اوس د متّقينو انجام بيان فرمايي، چې دوی به د خپل صدق په سبب د الله تعالی د استاځي له رښتيا وعدې سره سم په يوه غوره ځای کې وي، چې هلته به يې د مالک الملک والملکوت د قرب دولت په لاس وي.

تمّت سورة القمر بعون الله وتوفيقه.

# سُورَةُ الرَّحْمٰنِ

«د (الرحمٰن) سورت مدني دی، (۷۸) آیتونه (۳) رکوع لري، په تلاوت کې (۵۵) او په نزول کې (۹۷) سورت دی، وروسته د (الرعد) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلرَّحْمٰنُ ۝١ عَلَّمَ الْقُرْاٰنَ ۝٢

رحمان. ښوولی دی قرآن (هغه چا ته چې اراده يې شوې ده د قرآن ښوولو).

تفسير: يعني دغه قرآنکريم د الله تعالی په عطاياوو کې لويه عطيه ده، او د ده په نعمتونو کې له ګردو څخه لوی نعمت او رحمت دی، د انسان بساط ته او د هغه ظرف ته خيال وکړئ، او د قرآن د علم دا بې څنډې لرونکي بحر او سيند ته وګورئ، او بيا څير شئ چې انسان ته يې سره له دومره ضعفه څومره عزّت او لويي د عظيم الشأن قرآن په وربښلو سره ورکړې ده.

تنبيه: د «النجم» په سورت کې يې وفرمايل چې: ﴿عَلَّمَهٗ شَدِيْدُ الْقُوٰى﴾ الآية ـ او دلته يې راښکاره کړه چې د قرآن اصلي ښوونکی الله تعالی دی، که څه هم د پرښتو په وسيلې سره يې رابښي.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ ۝٣ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ۝٤

پيدا کړی يې دی انسان. بيا يې ورښوولی دی بيان (خبرې چې د زړه مقصدونه يې پرې اداء کيږي).

تفسير: «ايجاد» يعني د وجود عطاء فرمايل د الله تعالی له لويو نعمتونو څخه دي، بلکه د ګردو نعمتونو بېخ دی، او هغه په دوه ډوله دی، ايجاد د ذات، او ايجاد د صفت، نو الله تعالی اول سړی پيدا کړ، او په هغه کې يې د علم بيان صفت هم کېښود، يعني قوّت يې وروباښه، چې د خپل زړه خبره په ډېره صفايي، حسن او ښه والي سره اداء کړی شي، او د نورو په خبرو او اترو باندې هم ښه وپوهيږي.

اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ بِحُسْبَانٍ ۝٥

لمر او سپوږمی (جاري او روان) دي په حساب سره (چې پخپل تګ کې نه تيريږي له هغه نه).

تفسير: يعني د دواړو طلوع او غروب زياتوالی او لږوالی يا په يو احوال باندې قائم پاتې کېدل، بيا د هغوی په وسيله د فصلونو او موسمونو بدلېدل، او په سُفليّاتو باندې راز راز تأثيرات غورځول؛ د اکرد تر يوه خاص حساب او ضابطې او مضبوط نظام لاندې دي، مجال نشته چې د هغه له ټاکلې دائرې څخه بهر ووځي، او د خپل مالك او خالق له ورکړيو شويو احکامو څخه مخ واړولی شي.

وَّالنَّجْمُ وَالشَّجَرُ يَسْجُدٰنِ ﴿۶﴾

او ستوري يا نباتات (چې ساق نه لري د ودرېدو) او ونې (چې ساق لري د ودرېدو) سجده کوي دوی دواړه (الله تعالی ته دغسې سجده چې له شان د دوی سره مناسبه ده، او ټول د الله تعالی تسبیح وايي چې بل پرې نه پوهيږي).

**تفسير:** يعني د علويّاتو په شان سفليّات هم د خپل مالك مطيع او منقاد دي، له وړو كي تر كودې (نباتات) څخه نيولې تر غځېدلو پنګو جلغو (تاكو) لويو ونو او غنو؛ ګرد د هغه د تكويني امر په مقابل كې سر په سجده دي، كه بندګان دوی پخپلو چارو كې ولګوي؛ نو له هغه څخه هم انكار نشي كولی.

وَالسَّمَآءَ رَفَعَهَا وَوَضَعَ الْمِيْزَانَ ﴿۷﴾ اَلَّا تَطْغَوْا فِي الْمِيْزَانِ ﴿۸﴾ وَاَقِيْمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيْزَانَ ﴿۹﴾

او اسمان پورته كړی دی (الله) هغه (پر ځمكه باندې)، او ايښی يې دی ميزان (تله د عدل پر ځمكه). لپاره د دې چې ونه كړئ تاسې تېری په ميزان تله (د عدل) كې. او برابروئ وزن تول په انصاف سره او مه كموئ ميزان تلل (او كمی مه كوئ په تول كې).

**تفسير:** د ميزان څخه عدل او انصاف مراد دی، الله تعالی اسمانونه او ځمكې د عدل د پلي كولو په منظور پيدا كړي دي، او په دې عدل ټول نظام د دنيا ولاړ دی، نو انسان ته نه ښايي چې عدل او انصاف پرېږدي، او يا د ميزان څخه دا معروفه تله مراده ده، چې انسان بايد د تللو په وخت كې زياتې ونه كړي.

وَالْاَرْضَ وَضَعَهَا لِلْاَنَامِ ﴿۱۰﴾

او ځمكه غوړولې ټيټه كړې ده (الله) لپاره د خلقو.

**تفسير:** يعني خلق په هغې باندې په آرامۍ او هوسايۍ سره تګ وكړي، او راشه درشه ولري، او خپل كاروبار دنده (وظيفه) قائمه وساتي.

فِيْهَا فَاكِهَةٌ وَّالنَّخْلُ ذَاتُ الْاَكْمَامِ ﴿۱۱﴾ وَالْحَبُّ ذُو الْعَصْفِ وَالرَّيْحَانُ ﴿۱۲﴾

په دې (ځمكې) كې (ډول ډول) ميوې دي، او خرماګانې دي خاوندانې د پوښو. او (په دې ځمكه كې دي ډول ډول) دانې خاوندانې د وښو او (خاوندانې) د خوشبويۍ ورقې د ښو وږمو.

**تفسير:** يعني ميوې او دانې هم له ځمكې څخه راوځي، او په غلو او دانو كې دوه شيان وي، اول دانه چې هغه زياتره د انسانانو خواړه دي، بل واښه چې هغه د حيواناتو خوراكه ده، او ځينې نور شيان هم له ځمكې ځنې پيدا كيږي، چې يا د خوړلو لپاره پكار راځي، يا د خوشبويۍ لپاره او د ښو وږمو او د نورو چارو او كار فائده ورڅخه اخيسته كيږي.

فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ ﴿۱۳﴾

پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منكر برېئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلكه نشئ كېدی).

**تفسير:** يعنې ای پيريانو او انسانانو ! په پاس آيتونو کې ستاسې د رب هغه عظيم الشّأن نعمتونه او د قُدرت لويې نښې چې بيان کړی شوې، تاسې به د هغو له منځه د کومو کومو څيزونو په دروغ گڼلو باندې ځغردوالی او جرأت وکړئ، آيا دا نعمتونه او نښې د نه منلو او د انکار وړ (لايق) دي، بلکه نه دي.

عالمان د يوه صحيح حديث په بناء سره ليکي: «کله چې کوم سړی دا آيت ولولي: ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ يا يې واوري؛ نو داسې جواب دې وکړي: «لا بشيء من نعمك ربنا نكذب، فلك الحمد»، «ای څمونږ پالونکيه ! مونږ ستاسې هيڅ يو نعمت نه شو دروغ گڼلی، حمد او ثناوې ستاينې (صفتونه) تاته دي».

خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ صَلْصَالٍ كَالْفَخَّارِ ﴿۱۴﴾ وَخَلَقَ الْجَانَّ مِنْ مَارِجٍ مِنْ نَارٍ ﴿۱۵﴾

پيدا کړی دی (الله) انسان (آدم) له ختې کړنگېدونکې وچې څخه په شان د کودړې. او پيدا کړی دی (الله) (پلار د) پيريانو (ابليس) له خالصې شُغلې د اور څخه چې دود يې نه درلود.

**تفسير:** يعنې د ګردو بني آدمانو پلار مو له خاورې څخه، او د پيريانو پلار مو د اور له خالصو لمبو څخه پيدا کړی دی.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۱۶﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بږئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی).

**تنبيه:** ﴿فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ﴾ جمله په دې سورت کې (۳۱) يو دېرش ځلې تکرار شوې ده، او په هر ځلې کې د يوه خاص نعمت په لوري اشاره شوې ده، يا د عظمت او قدرت له شئونو څخه يو خاص شان ته توجه په عمل راغلې ده، داسې مکرّرات د عربو او د عجمو په خبرو کې ډېر موندلی کيږي.

رَبُّ الْمَشْرِقَيْنِ وَرَبُّ الْمَغْرِبَيْنِ ﴿۱۷﴾

دی رب د دواړو مشرقونو (لمر ختو د ژمي او اوړي) دی، او رب د دواړو مغربونو (لمر پرېوتو د ژمي او اوړي) دی.

**تفسير:** په اوړي او ژمي کې له کومو ځايونو څخه چې لمر راخيژي، او په کومو کومو ځايونو چې لمر پرېوځي، همدغو ځايونو ته «مشرقين» او «مغربين» وايه شي، چې د همدې مشرقينو او مغربينو د تغيير او تبديل څخه موسمونه او فصلونه پيدا کيږي، او راز راز انقلابات څرګندېږي، د ځمکې هستېدونکيو ته له دې تغيراتو څخه په زرهاوو ګټې فوائد او مصالح ور رسيږي، نو د دوی بدلېدل او يو د بل په ځای راتلل هم د الله تعالی لوی نعمت دی، او د الله تعالی له لويو قدرتونو ځنې يو عظيم قدرت دی.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۱۸﴾ مَرَجَ الْبَحْرَيْنِ يَلْتَقِيَانِ ﴿۱۹﴾ بَيْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَا يَبْغِيَانِ ﴿۲۰﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بږئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). بهولي يې دي دوه بحرونه سيندونه چې يو ځای ښکاريږي. په منځ د دواړو کې يوه پرده ده چې نه ګډيږي يو په بل باندې.

تفسير: يعنې هسې نه دې چې خوږې او ترخې اوبه يو په بل باندې تېرې وکړي، او د مخامخ خوا په خاصيت کې څه تزييد او تبديل وارد کړي، يا د دې دواړو له يو ځای کېدلو څخه دومره اوبه زياتوب وکړي، چې د طوفان او ډوبېدلو وېره پيدا شي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢١﴾ يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ ﴿٢٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢٣﴾ وَلَهُ الْجَوَارِ الْمُنشَآتُ فِي الْبَحْرِ كَالْأَعْلَامِ ﴿٢٤﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بېرئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). راوځي له دې دواړو څخه لؤلؤ او مرجان. پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بېرئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). او خاص دغه (الله) لره دي بېړۍ تلونکې نوې پيدا کړی شوې لوړې په بحر سيند کې لکه لوی لوړ غرونه.

تفسير: يعنې کشتۍ او بېړۍ که څه هم په ښکاره ستاسې جوړ کړي شيان دي، مګر ستاسې جوړوونکی الله تعالی دی، او همغه پاک الله تاسې ته هسې قوّت، قدرت، ساز، او سامان دربښلی دی، چې د هغه په وسيله يوائې جهازونه نه بلکه په زرهاوو نور شيان جوړولی شئ، نو څکه الله تعالی ستاسې او ستاسې د ګردو مصنوعاتو او مملوکاتو څښتن او خالق دی، او دا ګرد د هغه نعمتونه او د ده د قدرت دلائل او نښې دي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢٥﴾ كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ﴿٢٦﴾ وَيَبْقَىٰ وَجْهُ رَبِّكَ ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿٢٧﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بېرئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). ټول هغه څوک چې په دې (ځمکه) کې دي؛ فانې کېدونکي دي، او باقي به پاتې شي مخ د رب ستا چې خاوند د جلال لويي دی، او (خاوند د) اکرام عزت ورکولو، عظمت، فضل او احسان دی.

تفسير: هيڅوک د ځمکې پر مخ پاتې کېدونکی نه دی، هر څه به فناء کيږي، يوائې د الله تعالی مخ چې د عظمت او اکرام خاوند دی؛ به پاتې کيږي، د الله تعالی د مخ ذکر وشو، چې دا د ټول ذات په پاتېکېدو دليل دی، الله تعالی لره مخ ثابت دی، څرنګه چې د ده د شان سره مناسب وي، کيفيت بيانول، او تمثيل او تشبيه يې د مخلوقاتو د مخونو سره ناروا ده، همدا راز په معنی کې يې تحريف کول باطل دي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٢٨﴾ يَسْأَلُهُ مَن فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِي شَأْنٍ ﴿٢٩﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر بېرئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). سوال غوښتنه کوي له دغه (الله څخه د رزق د مغفرت او دنورو حوائجو) هر هغه څوک چې په اسمانونو، او په ځمکه کې دي، هره ورځ هر وخت دی په يوه کار کې دی (لکه ژوندي کول، مړه کول او داسې نور).

تفسير: د ځمکې او اسمان ټول مخلوقات د حال او وينا په ژبه خپل حاجات د الله تعالی څخه غواړي، او الله تعالی هره ورځ يو کار ترسره کوي، څوک وژني، څوک پيدا کوي، يو رنځوروي، يو جوړوي، له يوه څخه دنيا اخلي، او بل ته يې ورکوي، يو ځای ودانوي، بل ځای ورانوي، لنډه دا: هر څه چې غواړي؛ کوي يې.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٠﴾ سَنَفْرُغُ لَكُمْ أَيُّهَ الثَّقَلَانِ ﴿٣١﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٢﴾ يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ
وَالْإِنسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَن تَنفُذُوا مِنْ أَقْطَارِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ فَانفُذُوا ۚ لَا تَنفُذُونَ إِلَّا بِسُلْطَانٍ ﴿٣٣﴾

پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منكر ېږئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلكه نشئ كېدى). ژر ده چې فارغ وزګار به شو مونږ (او قصد به وكړو حساب د) تاسې ته اى دوو درنو قبيلو (د انسانانو او پيريانو). پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منكر ېږئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلكه ترې منكرېدى نشئ چې دا د الله له جانبه نه دي).
اى ټوليه د پيريانو او د انسانانو ! كه چېرې قدرت لرئ تاسې چې بهر ووځئ (وتښتئ تاسو) له څنډو (غاړو) د اسمانونو او (له څنډو د) ځمكې څخه، پس ووځئ، وتښتئ، وبه نه وځئ وبه نه تښتئ تاسې مګر په قوت او زور سره (چې نه يې لرئ !).

تفسير: په ﴿سَنَفْرُغُ﴾ كې مقصود د الله تعالى له جانبه په حساب سره د خلقو ويرول دي ، نه وزګاربدل دي له څه كار څخه په رښتيا سره، ځكه چې نه مشغولوي الله تعالى يو كار له بل كار څخه، يعنې كه څوك وغواړي چې د الله تعالى له حكومت څخه وتښتي؛ نو بې له قوّت او غلبې څخه به څرنګه وتښتي؟ آيا پر ته (علاوه) له الله جل جلاله څخه بل څوك قوّتمن او زورور شته؟ نو دى به چېرې وتښتي؟ بله باچايي او قلمرو كوم دى چې دى هلته لاړ شي، برسېره پر دې د دنيا معمولي حكومتونو ته هيڅوك بې سنده او بې پاسپورټه نه پرېږدي چې لاړ شي يا راشي، نو الله تعالى به څرنګه چاته اجازه وركړي چې بې له سنده بل چېرې لاړ شي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٤﴾

پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منكر ېږئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلكه نشئ كېدى).

تفسير: يعنې داسې په ښكاره ډول به ګرد وراندې او وروسته او لاندې باندې درښيي، او پر هر شي باندې تاسې خبروي، چې هر يو له دوى څخه لوى نعمت دى، نو آيا تاسې به د دې لويو نعمتونو هيڅ قدر نه كوئ؟ او د الله تعالى هسې عظيم الشأن قدرتونه به دروغ ګڼئ.

يُرْسَلُ عَلَيْكُمَا شُوَاظٌ مِّن نَّارٍ وَنُحَاسٌ فَلَا تَنتَصِرَانِ ﴿٣٥﴾

وبه لېږلى شي په تاسې باندې خالصې لمبې له اوره او په لوګي (سره ګډه، يا خالي له اوره)، بيا به تاسې مدد نشئ كولى يو له سره (په دفع د عذاب كې.)

**تفسير:** يعنې كله چې په ګنهګارانو باندې د اور صافې لمبې او د لوګي سره ګډې لمبې پرېښودى شي؛ نو هيڅوك به د هغو مخه نشي نيولى، او نه به يې په دفع پوهېږي، او نه به د هغې سزا كوم بدل او انتقام اخيستى شي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٦﴾

پس په كوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منكر ېږئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلكه نشئ كېدى).

تفسير: يعنې مجرمانو ته سزا ورکول او د هغوی د سزا بيان کول هم وفادارانو لره نعمت دی، چې خلق د هغې د اورېدلو لامله له هغه جُرم څخه ځان وژغوري (وساتي)، نو دا يو مستقل انعام دی.

فَإِذَا انشَقَّتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ وَرْدَةً كَالدِّهَانِ ﴿٣٧﴾

بيا کله چې وچوي، څيري شي اسمان؛ نو وبه ګرځي ګل سور رنګ لکه سرې څرمنې (يا د زيتون تېل).

تفسير: يعنې د قيامت په ورځ کې به اسمان وچوي، او رنګ به يې لکه سره څرمن غوندې برېښي، يا به په شان د تېلو د زيتون ځلېدونکې پرقېدونکې وي، نو دا به څه لوی هيبت وي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٣٨﴾ فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُسْأَلُ عَن ذَنبِهِ إِنسٌ وَلَا جَانٌّ ﴿٣٩﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر ېږئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). نو په دغه ورځ (د چاودېدلو، څيريدلو د اسمان) کې نه به پوښتېدل کيږي له ګناه د دوی نه (نه) له انسانانو او نه له پيريانو.

تفسير: يعنې له کوم سړي يا پيري څخه به د هغه د ګناه د معلومولو په نسبت څه پوښتنې نه کيږي، ځکه چې الله تعالی ته هغه ټول څرګند دي، هو ! د الزام او توبيخ او ويرولو په ډول به پوښتنې ورځنې کوي، لکه چې (۱۴ جزء د الحجر سورت کې (۶) رکوع (۹۲) آيت کې) داسې راغلي دي: ﴿فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ﴾ يا دا مطلب چې له قبر څخه د وتلو په وخت کې هسې پوښتنې نه کيږي، او له هغه څخه وروسته پوښتنه له هغه څخه منافي نه ده.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٠﴾ يُعْرَفُ الْمُجْرِمُونَ بِسِيمَاهُمْ

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر ېږئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). پېژندل کيږي ګنهګاران (کافران) په علائمو نښو د دوی سره.

تفسير: يعنې د بڼو له توروالي او د سترګو د شينتوب به مجرمان پخپله پېژندل کيږي، بلکه چې مؤمنان مسلمانان به د اوداسه او لمانځه د نښو په لرلو سره له لرې هر چاته ښکاري، او د عباداتو انوار او آثار د هغوی سينګار زياتوي.

فَيُؤْخَذُ بِالنَّوَاصِي وَالْأَقْدَامِ ﴿٤١﴾

نو وبه نيولی شي (دغه منکران) په (ويښتو د) وچولي (تندي) سره او په قدمونو سره (او وبه غورځولی شي په اور کې).

تفسير: يعنې ځينې به له پيکيو څخه او ځينې به له پښو څخه نيسي، په دوزخ کې به يې اچوي، او په راښکودلو سره يې د اور په لوري کش کوي، يا د هر مجرم پنډۍ او هډوکي ماتاوه شي، او د هغوی وچولی له پښو سره يو ځای کاوه شي، او په ځنځيرونو او نورو سره يې تړلی په دوزخ کې غورځاوه شي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٢﴾ هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي يُكَذِّبُ بِهَا الْمُجْرِمُونَ ﴿٤٣﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر ېږئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). دا دوزخ دی هغه چې دروغ به يې ګڼلو دې لره مجرمانو (کافرانو).

تفسير: يعنې هلته به داسې ورته ويل کيږي، چې دا هغه دوزخ دی چې په دنيا کې ته د هغه له وجود څخه منکر وې.

يَطُوفُونَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ حَمِيمٍ آنٍ ﴿٤٤﴾

گرځي به دوی په منځ د دوزخ او په منځ د اوبو ډېرو تودو ډېرو گرمو کې.

تفسير: يعني کله به د اور او کله به د ډېرو تودو او ايشېدلو اوبو عذاب مومي: «ای لويه څښتنه ! له دې دوو تکليفونو او له نورو تکليفونو څخه مو تل وساتې !».

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٥﴾ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ ﴿٤٦﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). او هغه چا لره چې ويريږي (په وخت د گناه کې) له ودرېدلو څخه په مخ د رب خپل کې (حساب ته) دوه جنّتونه دي.

تفسير: يعنې هغه سړی چې په دنيا کې له دې خبرې څخه ويرېده، چې زه به يوه ورځ د خپل پاک پروردگار په مخ کې ودرېږم، او د يوې يوې ذرې او ککې شمېر به ورکوم، او له دې وېرې څخه به يې د الله تعالى له نافرمانی څخه ځان ساته، او د تقوی په سمه لاره باندې به يې ټک کاوه؛ نو ځکه هسې سړيو ته دوه عاليشان جنّتونه ورکول کيږي، چې د هغو صفتونه لاندې راځي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٧﴾ ذَوَاتَا أَفْنَانٍ ﴿٤٨﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). (هسې جنتونه) چې خاوندان د ډېرو ډېرو څانگو دي.

تفسير: يعنې په جنّت کې د مختلفو اقسامو راز راز مېوې به وي، او د ونې څانگې به ډېرې مېوې او ښه سيوري لري.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٤٩﴾ فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ ﴿٥٠﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). په دواړو (جنتونو) کې به دوه چينې وي چې بهيږي به (هر چېرته يې چې غواړي دوی).

تفسير: چې اوبه يې نه لږې کيږي او نه وچيږي، او تل بهېدونکې دي، او هر چېرې چې د دې جنتي زړه وغواړي؛ هلته ځي، د دغو چينو نومونه دا دي: «تسنيم» او «سلسبيل».

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥١﴾ فِيهِمَا مِنْ كُلِّ فَاكِهَةٍ زَوْجَانِ ﴿٥٢﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿٥٣﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ فُرُشٍ بَطَائِنُهَا مِنْ إِسْتَبْرَقٍ

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې ای انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدی). په دې دواړو (جنّتونو) کې به له هرې مېوې (آشنا ناآشنا وچه لمده او نور) دوه دوه قسمه وي. پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې ای

انسانانو او پیریانو، بلکه نشئ کېدی). تکیه کوونکي به وي پر هسې فرشونو باندې چې استرونه د
هغو به له وربښمو کلکو څخه به وي.

تفسیر: کله چې د هغه استر له کلکو وربښمو څخه وي، نو له هغې څنې دې اټکل او قیاس وکړ شي، چې د هغه مخ به
له څه نرم او پاسته وربښمين او ښه توکي څخه وي؟.

وَجَنَا الْجَنَّتَيْنِ دَانٍ ۝٥٤

او شوکول (د مېوې د دغو) دوو جنّتونو به تر لاس لاندې وي.

تفسیر: چې د هغو شوکول دانه دانه کول به ډېر آسان وي، په ولاړه، ناسته، ملاسته او په هر یوه حالت او ډول چې
جنّتیان وغواړي؛ ټولولی یې شي، او له هغو څخه په زړه پورې خوند اخیستی شي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝٥٥ فِيهِنَّ قَاصِرَاتُ الطَّرْفِ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنْسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ۝٥٦

پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وایئ (او منکر یږئ ترې ای انسانانو او پیریانو،
بلکه نشئ کېدی). په دغو (جنّتونو) کې به بندوونکې د سترګو (حورې) وي چې نه وي مسه
کړې دوی لره انسان پخوا له دغو (جنّتیانو مېړونو «خاوندانو» خپلو) او نه پیري.

تفسیر: یعنې د هغو عصمت ته د هیچا ګوته نه ده رسېدلې، او نه دوی پرته له خپلو مېړو څخه د نورو په لوري خپلې
سترګې غړوي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝٥٧ كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ ۝٥٨ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝٥٩

پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وایئ (او منکر یږئ ترې ای انسانانو او پیریانو،
بلکه نشئ کېدی). ګواکې دغه (حورې) یاقوت لعل وي (په صفایي) او مرجان وي (په سپینوالي
کې).پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وایئ (او منکر یږئ ترې ای انسانانو او
پیریانو، بلکه نشئ کېدی).

تفسیر: یعنې هسې خوشرنګې او بېش بها او قیمتدارې به وي.

هَلْ جَزَاءُ الْإِحْسَانِ إِلَّا الْإِحْسَانُ ۝٦٠

نه ده جزاء بدل د احسان نیکي مګر احسان نیکي ده.

تفسیر: یعنې د ښو بندګانو بدل پرته له ښه ثوابه بل څه کېدی شي؟ دې جنّتیانو په دنیا کې د الله تعالی داسې ډېر ښه
عبادتونه کړي وو، ګواکې هغوی الله تعالی پخپلو سترګو سره لیدو، او الله تعالی هم هغوی ته انتهایي بدل ورکړ.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ۝٦١ وَمِنْ دُونِهِمَا جَنَّتَانِ ۝٦٢

پس په کوم یوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وایئ (او منکر یږئ ترې ای انسانانو او پیریانو،
بلکه نشئ کېدی). او بې له دغو (دوو جنّتونو) دوه جنتونه نور هم دي.

تفسیر: ښایي وړاندنی باغ مقربینو لره وي، او دا دوه باغونه ښو ډلو (اصحاب یمین) لره وي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۶۳﴾ مُدْهَامَّتَانِ ﴿۶۴﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). تک تور به وي (له ډېر شينوالي ځخه).

تفسير: يو څيز چې ډېر زيات شين شي؛ توروالي ته اوړي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۶۵﴾ فِيهِمَا عَيْنَانِ نَضَّاخَتَانِ ﴿۶۶﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۶۷﴾ فِيهِمَا فَاكِهَةٌ وَنَخْلٌ وَرُمَّانٌ ﴿۶۸﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). وي به په دغو (جنّتونو) کې دوه چينې جوش وهونکې. پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). وي به په دغو (دوه جنتونو) کې هر راز مېوې او خرما او انار.

تفسير: خو د دنيا په انارو او کجورو باندې دې قياس ونه کړل شي، ولې چې د هغو مېوو کيفيّت او څنګوالى بل رنګ دى، او يواځې پاک الله تعالى ته معلوم دى.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۶۹﴾ فِيهِنَّ خَيْرَاتٌ حِسَانٌ ﴿۷۰﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). وي به په دغو (ټولو جنّتونو) کې حورې پيمخې نېکې ښايسته.

تفسير: يعنې په دغو څلور واړو جنّتونو کې به پېغلې وي، ښې رشې، پيمخې ښکلې.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۱﴾ حُورٌ مَّقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ ﴿۷۲﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). حورې به وي پټې کړې شوې په خيمو کې.

تفسير: له دې ځخه راښکاري چې د ښځې لويه بزرګي او صفت ستر او پرده ده، او د ښځې اصلي ډول او سينګار په کور او په پرده کې دى، او ښايي چې پخپلو کورونو کې درنې لکه مرغلرې ناستې وي.

فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۳﴾ لَمْ يَطْمِثْهُنَّ إِنسٌ قَبْلَهُمْ وَلَا جَانٌّ ﴿۷۴﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۵﴾ مُتَّكِئِينَ عَلَىٰ رَفْرَفٍ خُضْرٍ وَعَبْقَرِيٍّ حِسَانٍ ﴿۷۶﴾ فَبِأَيِّ آلَاءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبَانِ ﴿۷۷﴾ تَبَارَكَ اسْمُ رَبِّكَ ذِي الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ﴿۷۸﴾

پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). چې نه به وي مسه کړې دوى لره سړي پخوا له دغو (جنتيانو مېړو خپلو) او نه پيري. پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ (او منکر برئ ترې اى انسانانو او پيريانو، بلکه نشئ کېدى). تکيه کوونکي به وي دوى پر بالښتونو شين رنګو باندې، او پر فرشونو نفيسو عمده وو ښايسته وو باندې. پس په کوم يوه نعمت د نعمتونو د رب تاسې دروغ وايئ

(او منکر ېږئ ترې ای انسانانو او پیریانو، بلکه ترې منکر ېدی نشئ چې دا د الله له جانبه نه دي).
برکت ناک دی نوم د رب ستا چې خاوند د لويي، سترتوب او د عزت ورکولو او د انعام دی.

**تفسیر:** یعنې هغه څوک چې په خپلو وفادارانو باندې دومره احسان او انعام وفرمایي؛ نو غور وکړئ چې په ګردو نعمتونو کې اصلي ښه والی د ده د پاک نامه له برکته په لاس راځي، او د ده د نوم اخیستلو په وسیله دا نعمتونه حاصلیږي، بیا وپوهېږئ په هغه نامه کې چې دومره برکت وي؛ نو په مسمی کې به یې څومره برکات او حسنات وي.

تمّت سورة الرحمٰن بفضل الله الملك المنّان، فله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الوَاقِعَةِ

«د (الواقعة) سورت مكي دى، بې له (۸۱، ۸۲) آيتونو چې په مدينه كې نازل شوي دي، (۹۶) آيتونه او درې ركوع لري، په تلاوت كې (۵۶) او په نزول كې (۴۶) سورت دى، وروسته د (طه) له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

إِذَا وَقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ۝١ لَيْسَ لِوَقْعَتِهَا كَاذِبَةٌ ۝٢

كله چې واقعه شي واقع كېدونكې (قيامت). نشته پېښېدلو د هغې لره هيڅ نفس دروغ كوونكى (او انكار كوونكى لكه چې به وو تر منكر په دنيا كې).

**تفسير:** يعنې كله چې قيامت شي؛ نو دا به ښكاره شي چې هغه يوه رښتيا خبره وه، او هيڅوك يې مخه نشي نيولى، او نه يې بېرته شړلى شي، او هسې دعوى چې الله تعالى مړي نه ژوندي كوي، او نور ګرد دروغ ثابتيږي.

خَافِضَةٌ رَّافِعَةٌ ۝٣

(قيامت) ښكته كوونكى دى (د كفّارو په جحيم) پورته كوونكى دى (د ابرارو په نعيم).

**تفسير:** يعنې يوه ډله به پورته بېوله كيږي، او بله ډله به ښكته شړله كيږي، او لوى متكبرّان چې په دنيا كې دوى خپل ځانونه لوى ګڼل؛ د أسفل السّافلين په لوري راښكودل شي، او د دوزخ په اور كې به سوځي، او ډېرو متواضعينو او له الله تعالى څخې ويرېدونكيو ته به چې په دنيا كې به وړوكي او حقير ښكارېدل؛ د ايمان او صالح عمل په وسيله دجنّت لوړ ځايونه وربښل كيږي.

إِذَا رُجَّتِ الْأَرْضُ رَجًّا ۝٤ وَبُسَّتِ الْجِبَالُ بَسًّا ۝٥ فَكَانَتْ هَبَاءً مُّنْبَثًّا ۝٦

كله چې وخوځولى شي ځمكه په لړځولو سختو سره. او وربژول شي غرونه په رېژولو سختو سره. نو شي به دا غرونه يوه دوړه خوره كړى شوې.

**تفسير:** يعنې په ځمكه كې به سخته رېږدېدنه (زلزله) پيدا شي، او ګرد غرونه به ټوټې ټوټې شي، او له بڅركو څخه به يې هسې دوړې او ګردونه پورته كيږي، چې ټوله دنيا به په هغه كې ډوبيږي.

وَّكُنْتُمْ أَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝٧

او شئ به تاسې صنفونه درې (دوه جنّتيان او يو دوزخيان).

**تفسير:** يعنې د قيامت له وقوع څخه وروسته ګرد خلق په درې برخو ويشل كيږي، دوزخيان عام جنتيان او د مقرّبينو خواص چې د جنّت په اعلى درجاتو رسيږي، وروسته د دې درې واړو ذكر په مجمل ډول سره راځي، او بيا د هغو احوال په تفصيل سره بيانيږي.

فَأَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَيْمَنَةِ ﴿٨﴾

پس یاران ملګري د ښي لاس څومره ښه دي یاران ملګري د ښي لاس.

تفسیر: یعنې هغه خلق چې د عظیم عرش په ښي خوا کې وي، او هغوی د میثاق اخیستلو په وخت کې هم د آدم علیه السلام له ښي خوا څخه ایستلی شوي وو، او د هغوی اعمالنامې هم د هغوی په ښي لاس کې ورکولی کیږي، او پرښتې یې هم د دوی له ښي لاس څخه اخلي، نو هغه ورځ د دوی ښه والي او برکت ډېر زیات او د دوی مرتبه به ډېره لوړه وي، څمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه کې د همدوی په نسبت داسې یوه نندارہ کړې وه، چې آدم علیه السلام به کله چې خپل ښي لاس ته کاته؛ نو مسکېدل او تبسّم به یې کاوه، او کله چې به یې خپل کیڼ لاس ته وکتل؛ نو له ژړا پورې راورې کېده، نو دغه «أصحاب الیمین» خورا ښه نېک بختان دي، او د داسې ښو درجو او نعمتونو خاوندان دي، چې هر څوک پرې تعجّب کوي.

وَأَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ مَآ أَصْحَٰبُ ٱلْمَشْـَٔمَةِ ﴿٩﴾

او یاران ملګري د کیڼ لاس څومره بد سپک دي یاران ملګري د کیڼ لاس.

تفسیر: یعنې دا خلق د آدم علیه السلام له کیڼې خوا څخه ایستلی شوي، او د عرش عظیم په کیڼې خوا کې ودرولی شوي، او د دوی اعمالنامې هم په کیڼ لاس ورکولی کیږي، او پرښتې یې د هغوی له کیڼ لاس څخه کش کوي، نو دوی ډېر بدبخت او په ډېرو ډېرو ربړو او نحوستونو اخته دي، چې هر څوک پرې تعجّب کوي.

وَٱلسَّٰبِقُونَ ٱلسَّٰبِقُونَ ﴿١٠﴾ أُو۟لَٰٓئِكَ ٱلْمُقَرَّبُونَ ﴿١١﴾ فِى جَنَّٰتِ ٱلنَّعِيمِ ﴿١٢﴾

او ړومبی کېدونکي (حسناتو ته) هم دوی ړومبی کېدونکي دي (جنّت ته). هم دوی نژدې کړی شوي دي (الله ته). په جنّتونو د نعمتونو کې به وي.

تفسیر: یعنې هغه خلق چې په دنیا کې د علمیه وو او عملیه وو کمالاتو او د تقوی د مراتبو لامله وړاندې وي؛ نو په آخرت کې به هم د ښي لاس له ډلې څخه وړاندې تیریږي، او لوړو مرتبو ته خیژي، نو دوی به د الله تعالی په رحمتونو او تقرّب او وجاهت په مراتبو کې له ګردو څخه په مخکې وي، او ابن کثیر (رحمه الله) وایي چې: دا خورا منلی سړي به پیغمبران، رسولان، صدیقان، شهیدان وي، چې الله تعالی ته به مخامخ ودریږي.

ثُلَّةٌ مِّنَ ٱلْأَوَّلِينَ ﴿١٣﴾ وَقَلِيلٌ مِّنَ ٱلْـَٔاخِرِينَ ﴿١٤﴾

لویه ډله به وي له اوّلینو ړومبنیو څخه. او لږ دي له آخرینو وروستنیو څخه.

تفسیر: شاه صاحب لیکي: «ړومبی یې ړومبني امّتونه یاد کړل، او وروسته یې دا (محمّدي) امّت یاد کړ، یا به له وړاندې او وروسته څخه د همدې محمّدي امت مقدم او مؤخر کسان مراد وي، یعنې اعلی درجه سړي پخوا ډېر وو، او وروسته به لږ کیږي»، ابن کثیر (رحمه الله) له دې آیت څخه یو درېیم مطلب هم اخیستی، چې مونږ ته هغه غوره ښکاري، یعنې د هر امت په وړاندینیو پېړیو کې د نبي د صُحبت یا د قرب عهد له برکته اعلی درجه مقرّبین هومره چې زیات وي، په وروستنیو پېړیو کې یې دومره نه پاتې کیږي.

عَلَىٰ سُرُرٍ مَّوْضُونَةٍ ﴿١٥﴾

ناست به وي (جنّتیان) په تختونو اوبدلیو شویو چړاو کړیو شویو په زرو جواهرو باندې.

**تفسير:** چې دغه جنّتي تختونه په سپنسو د سرو زرو او جواهرو سره اوبدلي شوي وي.

مُّتَّكِـِٔينَ عَلَيۡهَا مُتَقَٰبِلِينَ ﴿١٦﴾

چې تکيه وهونکي به وي (جنّتيان) په هغو (تختونو) باندې مخامخ کېناستونکي يو بل ته.

**تفسير:** يعنې د دوی کېناستل به په داسې يو ډول سره وي چې د هيڅ يوه شا به د بل په لوري نه وي، او يو به د بل په ليدلو سره خوشالېږي.

يَطُوفُ عَلَيۡهِمۡ وِلۡدَٰنٞ مُّخَلَّدُونَ ﴿١٧﴾

ګرځي به په دوی باندې (لپاره د خدمت) هلکان تل پاتې کېدونکي (په هلکوالي سره).

**تفسير:** يعنې د دوی د خدمت لپاره به هسې هلکان ټاکلي شوي وي، چې تل به هغوی په همغه يوه صحيح او اندازه عمر او منګ وي، او ګرځي به دغه هلکان پر دغو جنّتيانو.

بِأَكۡوَابٖ وَأَبَارِيقَ وَكَأۡسٖ مِّن مَّعِينٖ ﴿١٨﴾ لَّا يُصَدَّعُونَ عَنۡهَا وَلَا يُنزِفُونَ ﴿١٩﴾

په ګلاسونو او په کوزو سره، او په کاسو لوښيو سره له صافو پاکو شرابو بهېدونکيو څخه. چې نه به سر خوږېږي له دغو (شرابو)، او نه به بې هوشه کېږي چټي وييږي (ترې).

**تفسير:** يعنې ډېر ښه او پاک شراب چې د هغو قدرتي چينې به په جنّت کې بهېږي، او د هغو له څښلو څخه به نه په سر کې خوږ پيدا کېږي، او نه به يې څښونکی چټي او اپلتې خبرې کوې، ځکه چې په هغو کې به نشه نه وي، او يوازې د خوښۍ، سرور، خوند، لذّت او خوشالۍ څخه به ډک وي.

وَفَٰكِهَةٖ مِّمَّا يَتَخَيَّرُونَ ﴿٢٠﴾ وَلَحۡمِ طَيۡرٖ مِّمَّا يَشۡتَهُونَ ﴿٢١﴾

او (ګرځي به په دوی باندې هلکان په) مېوو له هغه راز چې يې خوښوي (جنّتيان). او غوښو د مرغانو سره له هغه ډوله چې زړونه يې غواړي.

**تفسير:** يعنې هر کله يې چې مېوه زړه وغواړي، او هر راز غوښه يې چې خوښه وي؛ بې له زحمته او تکليفه هغه ورته رسيږي.

وَحُورٌ عِينٞ ﴿٢٢﴾ كَأَمۡثَٰلِ ٱللُّؤۡلُوِٕ ٱلۡمَكۡنُونِ ﴿٢٣﴾

او (ګرځي به په دغو جنّتيانو باندې) حورې پيمخې غټ سترګې په شان د لؤلؤ مرغلرو ساتليو شويو په پوښو کې.

**تفسير:** يعنې لکه صافې او پاکې مرغلرې غوندې چې د هيڅ ګرد او دوړو اثر او اغېزه به په کې نه وي.

جَزَآءَۢ بِمَا كَانُواْ يَعۡمَلُونَ ﴿٢٤﴾ لَا يَسۡمَعُونَ فِيهَا لَغۡوٗا وَلَا تَأۡثِيمًا ﴿٢٥﴾ إِلَّا قِيلٗا سَلَٰمٗا سَلَٰمٗا ﴿٢٦﴾

جزاء بدل ورکول دي په هغو چې وو دوی چې کول به يې (له حسناتو په دنيا کې). نه به اوري دوی په دغه (جنّت کې) چټي خبرې او نه د ګناه خبرې. مګر اوري يوه خبر سلام سلام (يعنې تل به سلام اچوي جنّتيان يو په بل باندې په جنّت کې).

تفسیر: یعنې چټې خبرې، لغویّات او واهیات به هلته بیخي نه وي، او نه به څوک دروغ وایي، او نه به پر چا باندې تُهمت او تور تړل شي، یوائې له هرې خوا څخه د سلامونو غږونه پورته کیږي، چې جنّتیان به یو بل باندې سلامونه اچوي، او پرښتې به همدوی ته سلام اچوي، او د الله تعالی سلامونه به هم دوی ته وررسیږي، چې هغه خورا د عزّت او احترام صورت لري، او په ډېر اعزاز او اکرام سره اجراء کیږي.

وَاَصۡحٰبُ الۡیَمِیۡنِ ۙ۬ مَاۤ اَصۡحٰبُ الۡیَمِیۡنِ ﴿۲۷﴾ فِیۡ سِدۡرٍ مَّخۡضُوۡدٍ ﴿۲۸﴾

او ملګري یاران د ښي لاس څومره ښه دي ملګري یاران د ښي لاس. په بېرو بې اغزیو کې به وي.

تفسیر: چې په راز راز خوندورو ګلانو کې پټې وي.

وَّ طَلۡحٍ مَّنۡضُوۡدٍ ﴿۲۹﴾ وَّ ظِلٍّ مَّمۡدُوۡدٍ ﴿۳۰﴾

او په کېلو له بېخه تر سره ډکو کړیو شویو کې به وي. او په سیورو اوږدو کړیو شویو همېشه وو کې به وي.

تفسیر: یعنې نه د لمر تکلیف وي، او نه د ګرمی، او نه د یخنی له لاسه کوم زحمت وررسیږي، نه به تیاره وي، تل به هسې وخت وي لکه چې د لمر ختُو له وخت څخه لږ څخه پخوا وي، او هسې یو برابر او ښه اوږد سیوری وي؛ چې ډېر ګړندی اس به په پنځه سوو پر له پسې کلونو تګ سره نشي ترې وتلی.

وَّ مَآءٍ مَّسۡکُوۡبٍ ﴿۳۱﴾ وَّ فَاکِهَةٍ کَثِیۡرَةٍ ﴿۳۲﴾ لَّا مَقۡطُوۡعَةٍ وَّ لَا مَمۡنُوۡعَةٍ ﴿۳۳﴾

او په اوبو بهېدونکیو توئیدونکیو همېشه وو کې به وي. او په مېوو ډېرو که به وي. چې نه به قطع کولی کیږي په هیڅ وخت. او نه به منع کولی کیږي په هیڅ عذر سره.

تفسیر: یعنې هر راز مېوې به وي چې پر ته له جنّتیانو څخه به هیچا ګوتې نه وي وروړې، او نه به چا پرې کړې وي، او نه د دنیا د موسمي مېوو غوندې وي چې کله وي او کله نه وي، او نه به په کې څه ډېل او انقطاع پېښیږي، بلکه تل ښه او تاندې او خوندورې مېوې موجودې وي، او بلا ممانعت او تکلّف به هر وخت ورتقدیمیږي.

وَّ فُرُشٍ مَّرۡفُوۡعَةٍ ﴿۳۴﴾

او په فرشونو اوچتو کړیو شویو کې به وي (په پالنګونو باندې).

تفسیر: یعنې خورا پریړ او جګ به وي، او له ظاهري او باطني حیثیته به هم خورا ښه اعلی عمده او هسک وي.

اِنَّاۤ اَنۡشَاۡنٰهُنَّ اِنۡشَآءً ﴿۳۵﴾ فَجَعَلۡنٰهُنَّ اَبۡکَارًا ﴿۳۶﴾ عُرُبًا اَتۡرَابًا ﴿۳۷﴾ لِّاَصۡحٰبِ الۡیَمِیۡنِ ﴿۳۸﴾

بېشکه مونږ نوي پیدا کړي دي دغه حورې په یوه ښه پیدا کولو سره. نو ګرځولي مو دي دوی بکرې پیغلې عاشقانې (پر جنتیانو خاوندانو خپلو) همزولې (په خپل مابین کې). لپاره د ملګرو یارانو د ښي لاس.

تفسیر: یعنې حُورې او د دنیا ښځې چې په جنّت کې سره ګډیږي؛ نو هلته د دې دنیا د ښځو پیدایش وده او ښایست به د الله تعالی په قدرت هسې وي چې تل به پیمخې، پېغلې، ښایسته او په زړه پورې وي، او د هغوی خبرې اترې، طرز،

اداء او ناز او طبيعي مينه د خپلو مېړو شوق ځان ته ورکش کوي، او تل به دوی د خپلو مېړو سره همزولې هم منګې او هم فکره وي.

ثُلَّةٌ مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿٣٩﴾ وَثُلَّةٌ مِّنَ الْآخِرِينَ ﴿٤٠﴾

(أصحاب اليمين به) لويه ډله وي له اولينو ړومبنيو خلقو څخه. او لويه ډله به وي له آخرينو وروستنيو خلقو نه.

**تفسير:** يعنې أصحاب اليمين په پخوانيو کې هم ډېر وو، او په وروستنيو کې به هم ډېر وي.

وَأَصْحَابُ الشِّمَالِ مَا أَصْحَابُ الشِّمَالِ ﴿٤١﴾ فِي سَمُومٍ وَحَمِيمٍ ﴿٤٢﴾ وَظِلٍّ مِّن يَحْمُومٍ ﴿٤٣﴾ لَّا بَارِدٍ وَلَا كَرِيمٍ ﴿٤٤﴾

او ملګري ياران د کيڼ لاس څومره بد دي ملګري ياران د کيڼ لاس. په اور تاوده کې به وي او په سوځوونکيو اوبو کې به وي. او په سيورې کې به وي د لوګي ډېر تور. چې نه به سوړ وي او نه به د عزّت راحت وي.

**تفسير:** يعنې د دوزخ د اور تک تور لوګی به پورته کيږي، او دوی به د هغه لوګي تر هغه سيوري لاندې ودرول کيږي، چې هلته به دوی ته هيڅ يو جسماني او روحاني آرام او هوسايي نه رسيږي، نه به يخني وررسيږي، او نه به هغه د پت او عزّت سيوری وي، ډېر ذليل او خوار به د هغه سيوري تر سوځوونکي براس لاندې په ربړو (تکليفونو) اخته وي، دا د هغوی د دنيوي خوشالی بدل دی، چې هغوی د هغه په غرور او ضد سره د الله تعالی او د هغه د رسول مخالفت کاوه.

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ ﴿٤٥﴾ وَكَانُوا يُصِرُّونَ عَلَى الْحِنثِ الْعَظِيمِ ﴿٤٦﴾

(دا عذابونه په سبب د دې وو چې) بېشکه دوی وو پخوا له دې څخه په دنيا کې ودان کړی شوي په نعمتونو کې خوشال. او وو دوی چې دوام اصرار ضد به يې کاوه پر ګناه لويه (کفر) باندې.

**تفسير:** هغه لويه ګناه کفر او شرک او د انبياوو تکذيب يا هسې دروغ قسمونه دي چې وايي يې: «له مړينې څخه وروسته هيڅ کله بيا ژوندون نشته».

وَكَانُوا يَقُولُونَ أَئِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ ﴿٤٧﴾ أَوَآبَاؤُنَا الْأَوَّلُونَ ﴿٤٨﴾

او وو دوی چې ويل به يې: آيا کله چې مړه شو مونږ، او شو خاورې او هډوکي؛ آيا بېشکه مونږ به بيا خامخا راپورته کړی شو؟. او پلرونه ځمونږ ړومبني هم (به بيا ژوندي راپورته کيږي؟ بلکه نه کيږو).

**تفسير:** هغه مړي هم ژوندي کيږي چې له مونږ څخه پخوا مړه شوي دي، يعنې دا خبره د چا په فکر او پوهې کې راتلی شي؟.

قُلْ إِنَّ الْأَوَّلِينَ وَالْآخِرِينَ ﴿٤٩﴾ لَمَجْمُوعُونَ إِلَىٰ مِيقَاتِ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ ﴿٥٠﴾

ووايه ته (ای محمده ! دوی ته) بېشکه چې ړومبني (خلق) او وروستني (خلق). به خامخا ګرد به ټول کړل شي وخت د ورځې معلومې ته (چې قيامت دی).

تفسیر: یعنې د قیامت ورځ چې د هغې وخت یواځې الله تعالی ته ښکاره دی، او د ده په علم کې مقرّر او مقدّر دی.

ثُمَّ إِنَّكُمْ أَيُّهَا الضَّالُّونَ الْمُكَذِّبُونَ ﴿۵۱﴾ لَآكِلُونَ مِن شَجَرٍ مِّن زَقُّومٍ ﴿۵۲﴾ فَمَالِئُونَ مِنْهَا الْبُطُونَ ﴿۵۳﴾

بیا به بېشکه تاسې ای ګمراهانو دروغ ویونکیو. خامخا خوړونکي به یئ (په دوزخ کې) له ونې د زقّوم څخه. پس ډک کوونکي به یئ له هغې (ونې) څخه ګېډې خپلې لره.

تفسیر: یعنې کله چې د لوږې له لاسه ترهور (مضطرب) شي؛ نو دا ونه دوی ته د خوړلو لپاره ورکوله کیږي، او دوی به له هغې څخه خپلې ګېډې ډکوي.

فَشَارِبُونَ عَلَيْهِ مِنَ الْحَمِيمِ ﴿۵۴﴾ فَشَارِبُونَ شُرْبَ الْهِيمِ ﴿۵۵﴾

پس څښونکي به یئ تاسې په هغه (زقوم خوړلي شوي) باندې له اوبو سوځوونکیو څخه. پس څښونکي به یئ (په شان) د څښلو د اوښانو ډېرو ترو.

تفسیر: یعنې هسې چې اوښ په ډېره سخته ګرمۍ کې د ډېرې تندې له لاسه وروسته له دې چې څو ورځې یې اوبه نه وي څښلې، او بیا اوبو ته وررسیږي؛ نو اوبه په ډېره وارخطایي سره څښي، چې یو ځاځکی هم نه ترې پاتې کیږي، دوزخیان به هم همداسې هغه سوځوونکې اوبه څښي، چې د هغوی خولې به تناکې او کولمې به یې ټوټې ټوټې لویږي، (العیاذ بالله).

هَٰذَا نُزُلُهُمْ يَوْمَ الدِّينِ ﴿۵۶﴾

دا (خوړل او څښل چې ذکر شول) مېلمستیا د دوی ده په ورځ د جزاء انصاف کې.

تفسیر: یعنې د انصاف اقتضاء همداسې ده چې د هغو منکرانو مېلمستیا همدا راز وکړه شي.

نَحْنُ خَلَقْنَاكُمْ فَلَوْلَا تُصَدِّقُونَ ﴿۵۷﴾

مونږ پیدا کړي یئ تاسې (له نشتوالي څخه) نو ولې تاسې باور یقین نه کوئ په ژوندون پس له مرګه؟.

تفسیر: یعنې دا خبره ولې نه منئ چې پخوا هم پیدا کوونکی الله تعالی دی، او بیا هم پیدا کوونکی همغه الله تعالی دی؟.

أَفَرَأَيْتُم مَّا تُمْنُونَ ﴿۵۸﴾ أَأَنتُمْ تَخْلُقُونَهُ أَمْ نَحْنُ الْخَالِقُونَ ﴿۵۹﴾

آیا وینئ تاسې (چې خبر راکړئ له) هغه اوبو څخه چې څڅوئ یې تاسې (پر رحمونو د ښځو خپلو کې)؟. آیا پیدا کوئ تاسې له دغه (مني نه بشر) که یو مونږ پیدا کوونکي؟.

تفسیر: یعنې د میندو په رحم کې له نطفې څخه سړی څوک جوړوي؟، هلته ستاسې هیڅ ظاهري تصرّف نه چلیږي، او د هیچا یو ښکاره لاس نه وررسي، او نه څه تصرّف په کې کولی شئ، بیا نو پرته له مونږ څخه بل څوک دي چې له هغه یو ځاځکي اوبو څخه هسې ښکلی شکل جوړوي؟ او بیا په هغې کې سا او روح اچوي.

نَحْنُ قَدَّرْنَا بَيْنَكُمُ الْمَوْتَ

مونږ مقدّر کړی مو دی په منځ ستاسې کې (ای مخلوقاتو) مرګ.

**تفسير:** یعنې ژوند بښل، وژل او نورې ګردې چارې ځمونږ په قدرت او قبضه کې دي، کله چې د وجود او د عدم واک او اختيار ځمونږ په لاس کې دی؛ نو وروسته له مړينې ژوندي کول هم مونږ ته کوم ګران کار نه دی.

وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٦٠﴾ عَلَىٰ أَنْ نُبَدِّلَ أَمْثَالَكُمْ وَنُنْشِئَكُمْ فِي مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٦١﴾

او نه يو مونږ عاجز چې څوک تېرى راباندې وکړي. له دې نه چې پيدا کړو بدل ستاسې (نور خلق) په شان ستاسې، او مونږ راپورته پيدا کړو تاسې په هغو (صورتونو سره) چې تاسې به علم نه پرې لرئ.

**تفسير:** شاه صاحب (رحمه الله) ليکی: «یعنې تاسې به بلې نړۍ (جهان) ته بيايو، او ستاسې په ځای به نور خلق ودروو».

وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ النَّشْأَةَ الْأُولَىٰ فَلَوْلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٦٢﴾

او خامخا په تحقيق پوهيدلي يئ تاسې په پيدا کولو ړومبنيو باندې؛ نو ولې نه يادوئ پند نه اخلئ (د دغه الله تعالى په قدرت، او يقين نه کوئ په بيا پيدا کولو باندې)؟.

**تفسير:** یعنې همغه ړومبنی پيدايش په ياد کړئ، او د هغه له مخې او اټکله دا دويم پيدايش هم قياس کړئ !.

أَفَرَأَيْتُمْ مَا تَحْرُثُونَ ﴿٦٣﴾ أَأَنْتُمْ تَزْرَعُونَهُ أَمْ نَحْنُ الزَّارِعُونَ ﴿٦٤﴾

آيا پس وينئ (چې خبر راکړئ ماته) هغه چې کرئ يې تاسې. آيا تاسې زرغونوئ هغه که مونږ يو زرغونوونکي؟.

**تفسير:** یعنې په ښکاره ډول سره خو تاسې تخم شيندئ، ولې دننه په ځمکه کې د هغه پالل او د هغه زرغونول، او له هغه څخه يو تک شين کښت جوړول، او بيا هغه ګټور ګرځول د چا کار دی؟ د دې په نسبت خو تاسې ظاهري او سطحي دعوى هم نشئ کولی، چې هغه ځمونږ تيار کړی شوی شی دی.

لَوْ نَشَاءُ لَجَعَلْنَاهُ حُطَامًا فَظَلْتُمْ تَفَكَّهُونَ ﴿٦٥﴾ إِنَّا لَمُغْرَمُونَ ﴿٦٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴿٦٧﴾

که اراده وفرمايو مونږ؛ نو خامخا وبه ګرځوو مونږ هغه (کښت لره) وچ وانښه ذره ذره، نو وبه ګرځئ تاسې تعجّب کوونکي او ويونکي د دې خبرې. ببشکه مونږ خامخا تاوان کړي يو (په زراعت خپل کې). بلکه مونږ محروم بې برخې کړی شوي يو (له رزق نه).

**تفسير:** یعنې د کښت له پيدا کولو څخه وروسته د هغه محفوظ او باقي پاتې کېدل هم ځمونږ کار دی، که مونږ وغواړو؛ نو کوم يو آفت ورولېږو، چې په هغه سره ګرد کښت خاورې ايرې شي، او بيا به تاسې خپل سر پخپلو لاسونو نيولی ژاړئ، او پخپلو منځونو کې به سره ناست راز راز خبرې به جوړوئ !، او وايئ به چې خانه ! تاته خو سږ کال ډېر لوی تاوان او جنجال در رسېدلی دی، که ښتيا پوښتنه کوئ؛ نو زه بالکل خوار او فقير او تش لاس پاتې شوی يم.

أَفَرَءَيْتُمُ الْمَآءَ الَّذِي تَشْرَبُونَ ﴿٦٨﴾ ءَأَنتُمْ أَنزَلْتُمُوهُ مِنَ الْمُزْنِ أَمْ نَحْنُ الْمُنزِلُونَ ﴿٦٩﴾

آيا پس وينئ (چې خبر راکړئ) تاسې اوبه هغه چې څښئ يې تاسې (او ژوند پرې تړلی دی)؟ آيا تاسو نازلې کړي دي هغه لطيفې خوږې (اوبه) له سپينو وريځو څخه که مونږ نازلوونکي راښکته کوونکي يو (د هغو اوبو؟ بلکه ته يې ای الله !).

تفسير: يعنې باران هم څمونږ په حکم سره وريږي، او د څمکې په خزانو کې هغه اوبه هم مونږ ټولوو، آيا تاسې څه زور او قوّت لرئ چې اوبه جوړې کړئ؟ يا يې په زور او زارۍ له وريځو څخه ووروئ؟.

لَوْ نَشَآءُ جَعَلْنَٰهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ ﴿٧٠﴾

که اراده فرمايو مونږ؛ نو وبه ګرځوو دا (اوبه) تروې ترخې؛ نو ولې شُکر نه وباسئ (تاسې په دغو نعماوو)؟.

تفسير: يعنې که مونږ اراده وفرمايو؛ نو خوږې اوبه ترخې کوو، چې هيڅوک يې ونشي څښلی، او نه کښت ته په کار ورشي، بيا هم تاسې څما احسان نه منئ، چې مونږ تاسې ته خوږې اوبه اوروو، او د خوږو اوبو لويې خزانې تاسې ته ساتو، او له هغو څخه تاسې ته راز راز ګټې رسوو.

أَفَرَءَيْتُمُ النَّارَ الَّتِي تُورُونَ ﴿٧١﴾ ءَأَنتُمْ أَنشَأْتُمْ شَجَرَتَهَآ أَمْ نَحْنُ الْمُنشِـُٔونَ ﴿٧٢﴾

آيا پس وينئ (چې خبر راکړئ) تاسې د اور هغه نه چې بلوئ يې تاسې (له هر راز محروقاتو نه). آيا تاسې پيدا کړې ده ونه د دې (اور) او که مونږ پيدا کوونکي يو (د هغې ونې او د ټولو محروقاتو؟ بلکه ته يې ای الله !).

تفسير: په عربو کې داسې څو تکې شنې ونې دي، چې د هغو د دوو لرګيو له سولولو څخه اور پيدا کيږي، لکه چې په هندوستان کې د بانس د ونې له سولولو څخه اور پيدا کيږي، پخوا له دې نه د (يس) د سورت په آخر کې د دې په نسبت څه بيان ليکلی شوی دی، يعنې په دې ونو کې اور چا ايښی دی؟ تاسې که ما؟ (بلکه تا ايښی دی ای الله !).

نَحْنُ جَعَلْنَٰهَا تَذْكِرَةً

مونږ ګرځولی مو دی دغه (دنيوي اور) تذکره يادول (د دوزخ).

تفسير: يعنې دې اورته وګورئ او د دوزخ اور ياد کړئ، دا هم د هغه اور يوه برخه او ادنی نمونه ده، او فکر وهونکي لره دا خبره ور په ياديږي، هغه الله چې له تکې شنې ونې څخه تک سور اور راوباسي، هغه په يقين سره کولی شي او قادر دی چې مړي هم ژوندي کړي.

وَمَتَٰعًا لِّلْمُقْوِينَ ﴿٧٣﴾

او (ګرځولی دی مونږ دا اور نفعمن او) په کار راتللو ته لپاره د مسافرانو محتاجانو بې وځلو.

تفسير: يعنې د بيديا او ميدان اوسېدونکيو او پردېسانو ته اور ډېر په کاريږي، په تېره بيا د ژمي او سړو په وخت کې، او پر ته له دې څخه د نورو هم ډېر په ښه ورځي، او د مدنيّت ډېر امور پرې مربوط دي.

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿۷۴﴾

نو وکړه نسبت د پاکۍ نامه د رب خپل ته چې له ګردو څنې لوی دی (او تل شاکر اوسه په دغو نعماوو یې).

تفسیر: یعنې هغه ذات چې داسې مختلف شیان او د کار وړ څیزونه یې پیدا کړي دي، او خاص پخپل فضل او احسان یې مونږ منتفع ګرځولي یو، د هغه شکر اداء کول په کار دي، او د کافرانو او منکرانو د هغو چټي او اپلتو خبرو په مقابل کې چې هغه الله تعالی ته یې نسبت کوي؛ د هغه د مبارک نامه پاکي بیانول پکار دي، د تعجّب ځای دی چې دا خلق سره د داسې باهره وو آیاتونو او نښو د لیدلو بیا هم د هغه الله تعالی په قدرت او وحدانیت باندې هسې چې ښایي نه پوهیږي.

فَلَآ أُقْسِمُ بِمَوَٰقِعِ النُّجُومِ ﴿۷۵﴾

نو قسم خورم زه په ځایونو د پرېوتلو د ستوریو باندې.

تفسیر: او دویمه معنی یې دا ده چې: قسم خورم د آیتونو په راښکته کېدلو د پیغمبرانو په زړونو باندې، یا د قرآني آیتونو په راښکته کېدلو باندې له اسمانه پر ځمکې باندې چې لږ لږ او ورو ورو رانازلیږي.

وَإِنَّهُۥ لَقَسَمٌ لَّوْ تَعْلَمُونَ عَظِيمٌ ﴿۷۶﴾ إِنَّهُۥ لَقُرْءَانٌ كَرِيمٌ ﴿۷۷﴾ فِى كِتَٰبٍ مَّكْنُونٍ ﴿۷۸﴾ لَّا يَمَسُّهُۥٓ إِلَّا الْمُطَهَّرُونَ ﴿۷۹﴾

او بېشکه دا قسم خامخا قسم دی که پوهېږئ تاسې عظیم ډېر لوی. چې بېشکه دا (کتاب لوستی شوی په تا باندې) خامخا قرآنکریم عزت والا دی. (چې لیکلی شوی دی) په کتاب پټ ساتلي شوي (لوح محفوظ) کې. چې نه مسه کوي ده لره او نه دې یې مسه کوي مګر هغه چې پاک کړی شوي وي (یعنې پاکان).

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې پرښتې په دې پاک کتاب باندې لاس لګوي، هغه کتاب همدا لیکلی شوی کتاب دی، د پرښتو په لاسونو سره یا په لوح محفوظ کې»، ځینې د ﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ﴾ ضمیر قرآن ته اړوي، یعنې دې پاک قرآن ته لاس نه وروړي مګر خو پاک سړي، یعنې هغه کسان چې زړونه یې صاف او اخلاق یې پاک وي، د همداسې سړیو فکرونه او عقلونه د دې لوی کتاب په علومو او حقائقو، معارفو او آیتونو باندې هم په ښه ډول سره رسیږي، یا نه مسه کوي دا قرآن مګر خو پاک خلق، یعنې بې اودسه هغه ته لاس نه وروړي، لکه چې د نبوي احادیثو څخه هم دا خبره ثابته شوې ده، نو په دې تقدیر سره د ﴿لَّا يَمَسُّهُۥٓ﴾ نفي به د نهي لپاره وي.

تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿۸۰﴾

(هغه قرآن چې ټوټه ټوټه) نازل کړی شوی دی له (طرفه د پالونکي) رب د عالمیانو.

تفسیر: یعنې دا کومې کوډې (جادو) او ټوکې نه دي، او نه د کاهنانو چټي او اپلتې خبرې دي، او نه د شاعرانو توهّمات او مبالغات او هسکې استعارې دي، بلکه یو لوی، مقدّس، معزّز، پاک او اسماني کتاب دی، چې د رب العالمین له لوري د ټول عالم او ګردو نړۍ والو (اهل جهان) د لار ښوونې لپاره راښکته شوی دی، هغه الله تعالی ځمونږ پاک الله دی چې د لمر، سپوږمۍ او ستوریو ډېر کلک، محکم، عجیب، غریب او ښکلی ترتیب او نظام یې قائم کړی دی، او هغه ګرد سماوي اجرام د یوه مرتّب قانون اومنظم اصولو سره د خپلو ورځنیو ختلو او پرېوتلو او نورو تأثیراتو او اغېزو سره د خپل عظمت، قدرت، قوّت، وحدانیت، تصرف او د عظیم الشأن اقتدار مظاهرې او په زړه پورې ننداره راښیي.

أَفَبِهَٰذَا الْحَدِيثِ أَنتُم مُّدْهِنُونَ ﴿٨١﴾ وَتَجْعَلُونَ رِزْقَكُمْ أَنَّكُمْ تُكَذِّبُونَ ﴿٨٢﴾

آيا په دې خبرې (د قرآن) باندې تاسې سپک کوونکي يئ (دروغ يې گڼئ)؟. او گرځوئ تاسې روزي برخه خپله (له قرآنه دا خبره) چې تاسې دروغ گڼونکي يئ (دغه قرآن لره).

تفسير: يعنې آيا دا هسې دولت دی چې له هغه ځنې په گټه اخيستلو کې تاسې سُستي او کاهلي وکړئ، او خپله برخه همدومره وگڼئ چې د الله تعالی هغه راښوولي حقائق دروغ ثابتوئ؟ لکه چې د باران د ليدلو په وخت کې وايي چې هغه ستورى هغه برج ته راغلی؛ نو ځکه ورښت وشو، گواکې دوی د الله په قدرت قائل نه دي، او په هسې وينا سره دوی د رحمت د دې باران قدر هم نه کوي، چې د پاک قرآن په شکل کې رانازل شوی دی، او دا ويل چې د الله تعالی له خوا نه دی لېږلی شوی؛ سخته بدبختي، حرمان او بد نصيبي ده، آيا د يوه نعمت شکر گزاري همداسې کېدی شي، چې هغه دروغ وبللی شي؟.

فَلَوْلَا إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ ﴿٨٣﴾ وَأَنتُمْ حِينَئِذٍ تَنظُرُونَ ﴿٨٤﴾ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنكُمْ وَلَٰكِن لَّا تُبْصِرُونَ ﴿٨٥﴾ فَلَوْلَا إِن كُنتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ ﴿٨٦﴾ تَرْجِعُونَهَا إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٨٧﴾

نو ولې په هغه وخت کې چې ورسيږي (روح د سړي) ستوني ته. او (حال دا وي چې) تاسې په دغه وخت حاضـر اوربدونکي نظر کوونکي يئ هغه ته. او مونږ ډېر نژدې يو هغه ته (ځمونږ پرښتې) له تاسې څخه مگر نه وينئ، او نه پوهېږئ تاسې. پس ولې که يئ تاسې چې جزا نه درکوله کيږي او نه ژوندی کيږئ؛ نو راوگرځوئ تاسې دا (روح) که چېرې يئ تاسې رښتيني (په دې گمان خپل کې چې جزاء نشته).

تفسير: يعنې په داسې بېفکرۍ او بې خوفۍ سره د پاک الله تعالی خبرې دروغ گڼئ، گواکې تاسې د چا په حکم او واک کې نه يئ، يا هيڅ نه مرئ، او له الله تعالی سره نه مخامخ کېږئ، ښه ! څه وخت چې ستاسې د کوم عزيز او محبوب سا په ختلو کې وي، او سا يې په ستوني کې بنده شي، او د ځنکدن ربړونه پرې تيريږي، که تاسې له هغه سره نژدې کېنئ او د ده هغه بې وځلي او بېچارگي پرېشاني او سرگرداني وگورئ، له بلې خوا پرښتې له تاسې څخه هغه ته ډېرې نژدې دي، چې تاسې يې نه وينئ، که ستاسې واک او اختيار د بل چا په لاس کې نه دی؛ نو په هغه وخت کې تاسې د خپل هغه محبوب او مين سا او روح ولې نه شئ ساتلی؟ او د څه لپاره هغه مين او محبوب مو له تاسې څخه په داسې حال کې چې ستاسې زړونه خوړيږي، او اوښکې مو بهيږي، بېلتون کوي، او تاسې په خپل فراق او بيلتون ژړوي.

فَأَمَّا إِن كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٨٨﴾ فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ ﴿٨٩﴾ وَأَمَّا إِن كَانَ مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِينِ ﴿٩٠﴾ فَسَلَامٌ لَّكَ مِنْ أَصْحَابِ الْيَمِينِ ﴿٩١﴾

نو که چېرې وي (دغه مړی) له مقرّبينو څخه (الله ته). نو (شته ده لره) راحت هوسايي (آرام) او ښه رزق او جنّت ډک له نعمتونو څخه. او که چېرې وي (دا مړی) له يارانو ملگرو د ښي لاس. نو سلامتيا ده تا لره له يارانو ملگريو د ښي لاس څخه.

تفسير: يعنې تاسې د يوې شېبې لپاره هم هغه نه شئ ساتلی، او هغه خپل ځای ته هرومرو رسېدونکی دی، که هغه مړی له مقرّبينو څخه وي؛ نو اعلی درجه روحاني او جسماني، د هوسايي راحت عيش او چړچو سامانونو ته رسيږي، او په ښي لاسه ډله (اصحاب اليمين) کې شامليږي، او هيڅ يوه وېره او ربړونه ورته نه پاتې کيږي، شاه صاحب (رحمه الله) ليکي:

«یعنې د هغوی له لوري ډاډه (خاطر جمع) اوسه !»، یا دا مطلب چې د (أصحاب الیمین) له طرفه هغوی ته سلامونه رسیږي، یا هغه ته ویل کیږي: تا لره په راتلونکي وخت کې سلامتي او هوسایي (آرام) ده، او ته په اصحاب یمین کې شامل او ګڼل یې.

وَأَمَّآ إِن كَانَ مِنَ ٱلْمُكَذِّبِينَ ٱلضَّآلِّينَ ﴿٩٢﴾ فَنُزُلٌ مِّنْ حَمِيمٍ ﴿٩٣﴾ وَتَصْلِيَةُ جَحِيمٍ ﴿٩٤﴾

او که چیرې وي (دغه مړی) له دروغ ویونکیو ګمراهانو څخه. نو مېلمستیا ده (ده ته) له سوځوونکیو اوبو څخه. او ننه ایستل دي په اور (د دوزخ) کې.

تفسیر: یعنې د هغه پای او انجام هسې وي چې پخوا له مړ کېدلو څخه هغه ته د هغه راتلونکی حال احوال اوراوه کیږي.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ حَقُّ ٱلْيَقِينِ ﴿٩٥﴾

بېشکه دا خبره (چې ذکر شوه په شان د دې درې صنفو کې) خامخا همدا حقه یقیني ده.

تفسیر: یعنې ستاسې له تکذیب څخه هیڅ شی کېدونکي نه دي، هر هغه شیان چې د مؤمنانو او مجرمانو په نسبت خبر ورکړی شوی دی؛ هغه ګرد صحیح او یقیني دي، او هم هغسې کېدونکي دي.

فَسَبِّحْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلْعَظِيمِ ﴿٩٦﴾

پس وکړه نسبت د پاکی نامه د رب خپل ته چې له ګردو (ټولو) څخه ډېر لوی دی.

تفسیر: یعنې په تسبیح او تحمید کې مشغول اوسئ !، چې دا د هغه ځای لپاره لویه تیاري ده، او په همدې ښه چاره کې بوخت اوسئ !، او د مکذبینو د زړه خوږونکیو خبرو څخه زیات مه خپه کېږئ !.

تمّت سورة الواقعة، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الحَدِيدِ

«د (الحدید) سورت مدني دی، (۲۹) آیتونه او (۴) رکوع لري، په تلاوت کې (۵۷) او په نزول کې (۹۴) سورت دی، د (الزلزال) له سورت څخه وروسته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان ډېر رحم کوونکی دی.

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

نسبت د پاکۍ کوي الله ته هغه چې په اسمانونو او په ځمکه کې دي (سره له اسمانونو او ځمکو).

تفسیر: یعنې د حال یا د قال په ژبه په دواړو سره د الله تعالی حمد، ثناء، او تسبیح وایي.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝١ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ ۚ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝٢

او همدغه (الله) ښه غالب قوي ښه حکمت والا دی. خاص دغه (الله) لره ده باچايي د اسمانونو او (باچايي) د ځمکې، (همدغه الله) ژوندي کول کوي او مړه کول کوي، او همدغه (الله) په هر شي باندې ښه قادر دی (چې ځینې يې همدغه ژوندي کول او مړه کول دي).

تفسیر: یعنې په اسمان او ځمکه یا په دواړو کې یا هر چېرې د الله تعالی احکام چلیږي، او هر چېرې او هر کله واک او اختیار لري، د ایجاد او اعدام او د ګردو چارو ملونې او قبضه د ده په لاس کې ده، هیڅ یو قوّت او طاقت د هغه د تکویني قدرت او تصرّف مخه نشي نیولی.

هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ

همدغه (الله) اول دی (له هر شي څخه چې مخکې ترې څوک نشته)، او آخر دی چې وروسته ترې څوک نشته.

تفسیر: کله چې هیڅوک نه وو، الله جل جلاله موجود وو، او کله چې هر څه فنا شي؛ الله جل جلاله به موجود وي.

وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۝٣

او ظاهر دی، بره ترې څوک نشته، او باطن دی (دنیا کښې نه لیدل کیږي) د ده نه پناه څوک نشته، او همدغه (الله) دی په هر شي باندې ښه عالم ښه پوهیدونکی.

تفسیر: د هر شي وجود او ظهور د هغه الله تعالی له ایجاد څخه دی، نو ځکه د الله تعالی وجود که ظاهر او باهر نه وي؛ نو د بل چا به وي؟ له عرشه نیولې تر فرش پورې، او له ذرې څخه اخیستې تر لمر او نورو لویو کرو پورې، هر یو شی د هغه په وجود او شته والي باندې روښان دلیلونه دي، او بېلې بېلې شاهدۍ لولي، خو سره له دې د هغه ذات

او اصلي حقائقو او صفاتو ته هغسي چې ښايي عقل، پوهه او ادراک نه ور رسيږي، او د ده د هيڅ يوه صفت احاطه کول هم امکان نه لري، او نه پخپل قياس او ادراک سره څوک د هغه د څنګوالي (کيفيت) بيان کړی شي، نو ځکه ويلی شو چې له هغه څخه زيات پټ او باطن بل څوک نشته، په هر حال سره هغه الله تعالی د باندې هم دی او دننه هم دی، ظاهر هم شته او په باطن کې هم دی، او په هر راز احوالو باندې که پټ دی يا ښکاره؛ ښه خبردار او ډېر پوه دی، ظاهر د غالب په معنی هسې چې د هغه له پاسه هيڅ يو قوت نشته، باطن داسې چې له هغه څنې پر ته (علاوه) هسې کوم ځای موقع به نه وي چې څوک به هلته تـرې پټ شي، يا يې له علمه او پوهې څخه کوم شی لرې او پټ وي، د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په حديث کې راغلي دي: «وأنت الظاهر فليس فوقك شيء، وأنت الباطن فليس دونك شيء».

هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ

او دغه (الله) هغه ذات دی چې پيدا کړي يې دي اسمانونه او ځمکه په مقدار د شپږو ورځو کې (له ورځو د دنيا نه) بيا اوچت شو په عرش باندې (لکه چې له شانه د الوهيت د ده سره مناسبه وه).

يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا

معلوم دي (الله ته) هغه څه چې ننوځي په ځمکه کې (لکه مړي او باران) او هر هغه څه چې راووځي له دغه ځمکې نه.

تفسير: لکه کښت او ترکودې (نباتات) چې له ځمکې څخه راوځي، د دې بيان د (سبأ) په سورت کې پخوا له دې تېر شوی دی.

وَمَا يَنْزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا

او (معلوم دي الله ته) هر هغه چې نازليږي له اسمانه (لکه رحمت او عذاب)، او هر هغه چې پورته خيژي په دغه (اسمان) کې (لکه نېک عملونه او بد عملونه).

تفسير: يعني له اسمانه پرښتې حکمونه، د قضاء او قدر فيصلې، وريا (باران) او نور راښکته کيږي، او د بندګانو اعمال او د الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُه پرښتې او نور پورته کيږي.

وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنْتُمْ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ۝

او دغه (الله) له تاسې سره دی (په علم او قدرت سره) هر چېرې چې يئ تاسې، او الله پر هر هغه څه چې کوئ يې تاسې ښه ليدونکی دی (نو جزاء به پرې در کړي).

تفسير: يعني هيڅکله له تاسې څخه غائب نه دی، بلکه هر چېرې او په هر حال کې چې تاسې يئ؛ هغه ګرد دی ښه پېژني، او ټولې ښکاره او پټې خبرې ښه اوري، او ستاسې اعمال او نور ګرد شيان ښهويني.

لَهُ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَإِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ۝

خاص هغه (الله) لره ده باچايي سلطنت د اسمانونو او د ځمکې، او خاص الله لره ګرځول کيږي ټول کارونه.

تفسیر: یعنې منکران د الله تعالی له باچایي او قلمرو څخه د باندې وتلی نشي، په ګردو اسمانونو او ځمکه کې یوائځې د هغه وحده لا شریک له حکومت دی، او په پای کې د ګردو کارونو فیصله د ده له لوري کیږي.

یُولِجُ الَّیۡلَ فِی النَّهَارِ وَیُولِجُ النَّهَارَ فِی الَّیۡلِ ؕ

ننه باسي (الله) شپه په ورځې کې او ننه باسي (الله) ورځ په شپې کې.

تفسیر: یعنې الله تعالی کله ورځ لنډوي او شپه اوږدوي (په قوس او جدي کې)، او کله په عکس د دې شپې لنډوي او ورځې اوږدوي (لکه په جوزا او سرطان کې).

وَهُوَ عَلِیۡمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوۡرِ ۝

او دغه (الله) ښه عالم دی په پټو خبرو نیاتو عقائدو د سینو زړونو باندې هم.

تفسیر: یعنې په زړونو کې هغه نیات او ارادې یا هغه خطرې او وسوسې چې پیدا کیږي، په هغو ګردو باندې هغه ښه پوهیږي، او هیڅ شی د ده له پوهې څخه د باندې نه دي.

اٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَرَسُوۡلِهٖ وَاَنۡفِقُوۡا مِمَّا جَعَلَکُمۡ مُّسۡتَخۡلَفِیۡنَ فِیۡهِ ؕ

ایمان راوړئ تاسې (او په ایمان همېشه اوسئ) په الله او په رسول د دغه (الله) باندې، او لګوئ (په لاره د الله کې) له هغو (اموالو) څخه چې ګرځولي یئ تاسو (الله) خلیفګان (د پخوانیو) په هغو (اموالو) کې.

تفسیر: یعنې هغه مال او شته چې ستاسې په لاسونو کې شته، د هغو ګردو مالک او څښتن پاک پروردګار دی، او تاسې یوائځې د یوه امانتدار او خزانه دار په شان یئ، نو څکه په هر ځای او هر چا باندې چې هغه الله تعالی تاسې ته د هغه د صرفولو او لګولو په نسبت امر وکړي؛ په هم هغه ځای کې یې تاسې صرف کړئ، او دا خبره مو هم په یاد وي چې پخوا له دې څخه دا مال د نورو په لاسونو کې وو، خو اوس د هغوی په ځای تاسې یئ، او ښکاره ده چې تاسې به هم ځئ.

فَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا مِنۡکُمۡ وَاَنۡفَقُوۡا لَهُمۡ اَجۡرٌ کَبِیۡرٌ ۝

پس هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی له تاسې، او لګولي یې دي (اموال خپل په لاره د الله کې) هغوی لره دی اجر ثواب ډېر لوی (په جنّت کې، نو تاسې ته هم نفع رسوي ایمان او خرڅول د اموالو د تاسې).

تفسیر: نو څکه ضروري ده په هغو کسانو کې چې دا خصلت او صفت موجود نه وي، ښایي چې هغه پیدا کړي !، او په هغو کې چې شته، ښایي چې په هغه باندې مستقیم پاتې وي، او د ایمان په مقتضَی باندې ټګ او عمل وکړي !.

وَمَا لَکُمۡ لَا تُؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ ۚ وَالرَّسُوۡلُ یَدۡعُوۡکُمۡ لِتُؤۡمِنُوۡا بِرَبِّکُمۡ وَقَدۡ اَخَذَ مِیۡثَاقَکُمۡ اِنۡ کُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِیۡنَ ۝

او څه مانع عذر دی تاسې لره (بلکه هیڅ مانع نشته) چې ایمان نه راوړئ په الله او رسول د دغه (الله)، حال دا چې (رسول الله) رابولي تاسې چې ایمان راوړئ په رب خپل او په تحقیق اخیستې ده (الله) وعده کلکه د تاسې که چېرې یئ تاسې ایمان راوړونکي (نو ایمان ولې نه راوړئ؟).

تفسیر: یعني په الله تعالی باندې له ایمان راوړلو څخه یا د یقین او معرفت په لاري باندې له تللو څخنې کوم شیان ستاسې مخه نیسي؟ او په داسې چارو او معاملو کې لټې سستي او تقاعد ولې وکړ شي، الله تعالی او د هغه پاک رسول تاسې د کوم پردي او غیر معقول څیز په خوا نه رابولي، بلکه تاسې ته ستاسې د حقیقي رب او پالونکي په لور بلنه کوي، چې د هغه اعتقاد ستاسې په اصلي فطرت کې په ودیعت ایښود شوی دی، او تاسې د هغه د ربوبیت اقرار پخوا له دې څخه چې دنیا ته راشئ؛ کړی دی؟، لکه چې تر نن پورې د هغه اقرار اثر او اغېزه څه نه څه د بني آدمانو په زړونو کې موندله کیږي، بیا په دلائلو، براهینو او د رسولانو په ارسال او د اسماني کتابونو په لېږلو سره د هغه ازلي عهد او پیمان تجدید کیږي، او پخوانیو انبیاوو له خپلو امتیانو څخنې داسې وعده او پیمان هم اخیستی وو چې د خاتم الأنبیاء محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم اتباع دې هرومرو وکړي !، او له تاسې څخه ډېر سرې هسې هم دي چې پخپله د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مبارک لاس باندې د سمعې، طاعت، انفاق في سبیل الله او نورو ایماني امورو باندې د ټینګوالي او پابندۍ کلک عهد او تړون هم کړی دی، نو وروسته له دې مبادیو څخه اوس څنګه کېدی شي، هغه څوک چې د منلو اراده لري؛ هغه یې ونه مني، او چا چې منلی دی له هغه څخه غاړه وغړوي، او ترې انحراف وکړي؟.

هُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ عَلَىٰ عَبْدِهِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ لِّيُخْرِجَكُم مِّنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ بِكُمْ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿٩﴾

دغه (الله) هغه ذات دی چې نازلوي پر بنده خپل باندې دلائل ښکاره (لپاره د دې) چې وباسي تاسې له تیارو (د کفر) څخه رڼا (د ایمان) ته، او بېشکه الله په تاسې باندې خامخا ښه مهربان ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعنې قرآن یې را نازل کړ، او د صداقت لارې یې دروښودې، چې د هغو په وسیله تاسې د کُفر او جهل له تیارو څخه ووځئ، او د ایمان او علم او عمل رڼا ته راشئ، او دا د پاک الله لوی شفقت او مهرباني ده، که سختي یې کولی؛ نو تاسو به یې په همدې تیارو کې پرېښودئ، تر څو په کې مړه شئ، یا به یې د ایمان او یقین له راوړلو څخه وروسته ستاسې خطاوې او ګناهونه نه ښښل.

وَمَا لَكُمْ أَلَّا تُنفِقُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ

او څه مانع عذر دی تاسې لره چې نه نفقه کوئ نه لګوئ (مال خپل) په لاره د الله کې، او خاص الله لره دی میراث د اسمانونو او د ځمکې.

تفسیر: یعنې (مجازي) مالکان فنا کیږي، او ملک هغه حقیقي مالک ته چې الله تعالی دی پاتې کیږي، که نه هسې خو د تل لپاره هغه د ده مال وو، نو بیا د ده په مال کې سم د ده له امر سره خرڅ کول او لګول ولې در نه ښکاري؟، که په خپلې خوښې او واک سره یې نه ورکوئ؛ نو بیا واک هم هغه ته رسېدونکی دی، نو د بندګۍ اقتضاء او غوښتنه همدا ده چې په خوښۍ سره هغه وروړاندې کړئ !، او د هغه په لاره کې یې خرڅ کړئ !، او د فقر، فاقې، افلاس او تنګۍ څخه ونه ویرېږئ !، ځکه چې د ځمکې او د اسمانونو د خزانو او د شتو مالک او څښتن پاک پروردګار دی، نو آیا په دې لارې کې به پخپلې خوښې سره خرڅ کوونکي او لګوونکي وړې پاتې کیږی !؟.

لَا يَسْتَوِي مِنكُم مَّنْ أَنفَقَ مِن قَبْلِ الْفَتْحِ

نه دي برابر له تاسې څخه هغه چې لګولی یې دی (مال خپل په لاره د الله کې) پخوا له فتحې (د حدیبیې یا د مکې) څخه.

تفسير: ځينو له فتحې څخه د حُديبيې صلحه روغه مراد کړې ده، او له ځينو روايتونو څخه د هغه تأييد هم کيږي.

وَقٰتَلَ ۭ اُولٰۗىِٕكَ اَعْظَمُ دَرَجَةً مِّنَ الَّذِيْنَ اَنْفَقُوْا مِنْۢ بَعْدُ وَقٰتَلُوْا ۭ وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ۭ

او بيا يې جنګ کړی (د کافرانو سره)، دا (لګوونکي د مالونو خپلو په لاره د الله کې او جنګېدونکي پخوا له فتحې د حُديبيې يا د مکې نه) ډېر لوي دي له جهته د درجې مرتبې له هغو کسانو چې لګوي مال خپل په لاره د الله کې وروسته (له فتح د مکې نه) او جنګيږي (لپاره د اعلاء کلمة الله)، او له دواړو طائفو سره وعده کړې ده الله د نېکی (جنّت).

تفسير: يعنې که هسې د الله تعالى په لاره کې هر مهال هر شی خرڅ کړل شي او جهاد وکړ شي؛ هغه ښه دی، او الله تعالى به د هغه ډېر اجر په دنيا او آخرت کې ورکوي، ليکن هغه مقدور لرونکي چې له خپلو شتو څخه يې پخوا د حُديبيې له روغې يا د مکې له بري فتحې څخه خرڅ کړي دي، او د جهاد شرف يې ګټلی دی؛ هغوی ډېرې لويې درجې موندلي دي، او وروستني مسلمانان د هغوی په درجو پورې نشي رسېدلی، ځکه چې په هغه وخت کې د حق منونکي او په هغه باندې سر قربانوونکي سړي ډېر لږ وو، او ګرده دنيا له کافرانو او باطلو خوښوونکيو څخه ډکه وه، په هغه وخت کې اسلام جاني او مالي قرباني ته ډېره اړتيا او احتياج درلود، او مجاهدينو ته په ښکاره ډول د اسبابو، اموالو، غنائمو، وسلو، خوړو او نورو ضروورياتو هيلې او توقَعات ډېر لږ وو، په داسې حالاتو کې ايمان راوړل او د الله او د هغه د رسول په لاره کې د خپلو ځانونو او مالونو او شتو قربانول د دنيا د لويو اولوالعزمانو او د هغو لويو سړيو کار دی، چې د هغوی ثابت قدمي او ټينګتيا له غرونو څخه هم ټينګه او کلکه وي، فرضي الله عنهم ورضوا عنه.

وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۝۱۰

او الله په هغو کارونو باندې چې کوئ يې تاسې ښه خبردار دی (نو جزاء به پرې درکړي).

تفسير: يعنې الله تعالى له هر شي څخه خبر دی، او پوهيږي چې د چا عمل څه درجه لري؟ او د هغه د اخلاص وزن او تول څومره دی؟ نو له خپلې پوهې سره سم له هر يوه سره به بېله بېله معامله کوي.

مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهٗ لَهٗ وَلَهٗٓ اَجْرٌ كَرِيْمٌ ۝۱۱

څوک دی ذات هغه چې قرض ورکوي الله لره په قرض ورکولو نېکو سره، نو بيا به (الله) دوچنده کړي (هغه قرض) ده لره، او خاص ده ته اجر ثواب دی نېک (د عزّت).

تفسير: شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «له پور څخه دا مطلب دی چې په دې وخت په جهاد باندې تاسې خپل مالونه او شته ولګوئ، بيا همدا تاسې د ډېرو شتو خاوندان کېږئ، او په آخرت کې لويې مرتبې او مرادونه مومئ، د دوه ګوني معنى هم همدا ده، که نه د نوکر او بادار په منځ کې هسې ګټې وتې نشته، که چاته څه شي ورکوي مختيار دی، او که نه يې ورکوي؛ هم همدی مختيار او واکدار دی».

يَوْمَ تَرَى الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ يَسْعٰى نُوْرُهُمْ بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ

(ياده کړه ای محمده !) هغه ورځ (د قيامت) چې وينې ته مؤمنان سړي او مؤمناتې ښځې چې ځغلي به رڼا د دوی مخکښې له دوی څخه او له ښي خوا د دوی څخه.

تفسیر: د حشر په میدان کې کله چې د (صراط) په پل تیریږي، پس ډېره سخته توره تیاره وي، نو په دې وخت کې له هر چا سره د هغه د ایمان او ښه عمل رڼا وي، ښایي چې د ایمان رڼا چې ځای یې زړه وي، او د ښو عملونو به په ښي خوا کې وي، ځکه چې ښې چارې ګردې په ښي خوا کې سره ټولیږي، د هر چا ایمان او عمل په هره درجه اندازه او مېچ چې وي؛ په هغه مېچ او اندازه سره به د هغه رڼا او روښانتیا هم وي.

بُشْرٰىكُمُ الْيَوْمَ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ ذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۲﴾

(او وبه ویل شي دوی ته چې) زېری د تاسې نن ورځ دی (ننوتل په) جنت چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو (څلور قسمه) ویالې، تل به وي دوی په هغو کې، دغه دی هم دغه بری موندل ډېر لوی.

تفسیر: ځکه چې جنّت د الله تعالی د خوښۍ ځای دی، هغه کسان چې جنّت ته رسیږي؛ ګواکې د هغو ګردو مرادونه وررسېدلي وي.

يَوْمَ يَقُوْلُ الْمُنٰفِقُوْنَ وَالْمُنٰفِقٰتُ لِلَّذِيْنَ اٰمَنُوا انْظُرُوْنَا نَقْتَبِسْ مِنْ نُّوْرِكُمْ ۚ قِيْلَ ارْجِعُوْا وَرَآءَكُمْ فَالْتَمِسُوْا نُوْرًا ؕ فَضُرِبَ بَيْنَهُمْ بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ ؕ بَاطِنُهٗ فِيْهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهٗ مِنْ قِبَلِهِ الْعَذَابُ ﴿۱۳﴾

(یاده کړه ای محمده ! هغه) ورځ چې وایي به منافقان سړي او منافقانې ښځې هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی (داسې چې): وګورئ مونږ ته (انتظار وکړئ) چې رڼا واخلو له رڼا ستاسې، نو وبه ویل شي دوی ته (تمسخرًا): چې وګرځئ شاوو خپلو ته پس ولټوئ رڼا، پس وبه واهه شي په منځ د دغو (منافقانو او مؤمنانو) کې یو دېوال چې هغه لره به دروازه وي، دننه طرف د هغې (دروازې کې به چې د جنّت په جانب دی) رحمت وي (مؤمنانو لره)، او د باندې طرف ته د هغه (چې جانب د منافقانو دی) له طرفه د هغه څخه به عذاب وي.

تفسیر: یعنې د مؤمنانو او منافقانو په منځ کې به یو لوی دېوال ودرول کیږي، چې په هغه کې به یو ور وي، له دې وره به مؤمنان د جنّت په لورې درومي، او د منافقانو له سترګو څخه به پټیږي، د وره په منځ کې د جنّت وږمې او ښې ننداره له لرې بریښي، او له وره د باندې به د الله تعالی د عذاب ننې او د هغه ویروونکې اغیزې او منظرې وي.

يُنَادُوْنَهُمْ اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ؕ

غږ به وکړي (منافقان) دغو (مؤمنانو) ته: آیا نه وو مونږ له تاسې سره (ملګري په دنیا کې).

تفسیر: خبره داسې ده چې رسمي کافران به د (صراط) په پل باندې نه تیریږي، بلکه ړومبی به په دوزخ کې د هغه له وره څخه په ټېل وهلو غورځولی شي، هو ! هغه کسان چې د کوم پیغمبر امّت او تابعدار وي، اعمّ له دې چې ښه وي یا خراب؛ هغه به د (صراط) له پله تیریږي، وروسته له دې څخه چې د الله تعالی امر ورته وشي؛ په هغه پل باندې به وخیژي، په یوه سخته تیاره کې به ګرد خلق ډوبیږي، په دې توره تیاره کې به له ایمان لرونکیو سره یوه رڼا وي، چې دوه مخیز (منافقان) به هم غواړي چې د هغې رڼا په شاوخوا کې لاړ شي، خو څرنګه چې مؤمنان ډېر ګړندي او تېز لکه الوتکې، موټر، بایسکل، اس او نور ځغلي؛ نو ځکه هغه رڼا له هغوی لرې تښتي، نو دلته به دا منافقان په شورماشور او نارو سورو باندې خولې پرانیځي، چغې به وي او وایي: لږ خو ودرېږئ چې مونږ هم ستاسې په رڼا کې

درسره لاړ شو، مونږ په دا توره تیاره کې لکه ړانده هسې تیریږو، مونږ مه پرېږدئ چې له تاسې څخه وروسته پاتې شو، لږ څه ډیل وکړئ او انتظار وکړئ، چې مونږ هم ستاسې له دې ڼا څخه لږ څه ګټور شو، آخر مونږ په دنیا کې له تاسې سره یو ځای اوسېدو، او په ښکاره ډول مونږ هم په مسلمانانو کې شمېرل کېدو، دوی به داسې ځواب اوري چې: بېرته وګرځئ !، او خپلو ځانونو ته هلته رڼا ولټوئ !، که یې وموموئ له هغه ځایه یې واخلئ !، د دې خبرې له اورېدلو څخه دوی بېرته ګرځي، په دې منځ کې به په هسې یوه توره تیاره کې سره لویږي، چې په هیڅ یو شي باندې به د دې نظر ونه لګیږي، او هغه دېوال د دوی او د هغې رڼا په منځ کې راځي، مطلب یې دا چې دا رڼا په دنیا کې په ښو عملونو سره په لاس راتله، هغه ګټه او رڼا له تاسې څخه هلته پاتې شوې ده، بېرته دنیا ته وګرځئ چې دا هلته له تاسې څخه پاتې ده، یا به هغه ځای مراد وي چې د (صراط) په پل له ختلو څخه پخوا هلته رڼا او نور هر چا ته تقسیم کېده.

قَالُوا بَلَىٰ وَلَٰكِنَّكُمْ فَتَنتُمْ أَنفُسَكُمْ وَتَرَبَّصْتُمْ وَارْتَبْتُمْ وَغَرَّتْكُمُ الْأَمَانِيُّ حَتَّىٰ جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ وَغَرَّكُم بِاللَّهِ الْغَرُورُ ﴿١٤﴾

نو وبه وایي (مؤمنان منافقانو ته چې) هو ! وئ (تاسې له مونږ سره) مګر تاسې په فتنه کې اچولی وو تاسو ځانونه خپل، او انتظار کاوه تاسې (په آفتونو او حوادثو مؤمنانو ته)، او شک به مو کاوه تاسې (په اسلام کې)، او غولولي وئ تېر ایستلي وئ تاسې ارزوګانو خپلو تر هغه پورې چې راغی امر حکم د الله (چې مرګ ستاسې دی)، او غولولي یئ تاسې په (کرم د) الله باندې غولوونکي (چې شیطان دی).

تفسیر: یعني بېشکه په ښکاره ډول په دنیا کې تاسې له مونږ سره وئ، او په ژبې سره مو د اسلام دعوی کوله، خو باطني حالت مو داسې وو چې په لذّاتو او شهواتو کې وئ، او د نفاق لاره مو غوره کړېوه، او خپل ځانونه مو غولولي او په هلاکت کې مو اچولي وو، او بیا مو توبه هم ونه کړه، بلکه تل به مو لارې ته کتل، او انتظار به مو ایستو، چې کله پر اسلام او مسلمانانو باندې کومه ټکه لویږي، او د دین په نسبت به په شکوکو او شبهاتو کې لویدلي وئ، تاسې په همدې فریب او غلونه کې داسې ګڼل، چې وروسته له دې څخه به ستاسې څني هیڅ پوښتنه نه کیږي، او تاسې په داسې خیالونو کې مست او بېخبره پراته وئ چې د الله تعالی حکم او امر راورسېد، مرګ راغی او تاسې یې راګیر کړئ، ګواکې هغه لوی غولوونکي (شیطان) تاسې له لارې څخه وویستئ، چې اوس هیڅ یوه د ژغورنې او د خلاصې لاره درپاتې نه ده.

فَالْيَوْمَ لَا يُؤْخَذُ مِنكُمْ فِدْيَةٌ وَلَا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ مَأْوَاكُمُ النَّارُ ۖ هِيَ مَوْلَاكُمْ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿١٥﴾

پس نن ورځ وا به نخیستله شي له تاسې څخه (ای منافقانو !) فدیه معاوضه، او نه له هغو کسانو څخه چې کافران شوي وو، ځای د ورتلو ستاسې (او د دوی د ټولو) اور (د دوزخ) دی، همغه (اور لایق او) ملګری ستاسې دی، او بد ځای د ورتلو دی (دغه دوزخ).

تفسیر: یعني بالفرض که تاسې منافقان او ښکاره کافران څه معاوضه او فدیه ورکړئ، او وغواړئ چې په هغه چل سره مو ځانونه وژغورئ؛ نو د داسې چارې د منظورۍ هیڅ یو صورت نشته، پس تاسې ګرد په همغه کور کې پاتې کېدونکي یئ، او همدا د دوزخ اور ستاسې د هستوګنې ځای دی، او همدا مو ملګری دی، د بل چا د رفاقت او ملګرتوب توقّع او هیله او امید مه لرئ.

أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ

آیا نه دی راغلی وخت هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی (د دې) چې وویرېږي زړونه د دوی (له جهته) د ذکر (وعید) د الله نه، او (له جهته د) هغه څیز چې نازل شوی دی له حق څخه (چې قرآن دی).

**تفسیر:** یعنې هغه وخت رارسېدلی دی چې د مؤمنانو په زړونو کې د الله تعالی او د قرآن یاد او مینه او محبت لا ښه ځای ونیسي، او د اسلام د حقاني دین په مقابل کې غاړه کېږدي، او ښه پاسته شي، او له الله تعالی څخه لا وویرېږي.

وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ ﴿۱۶﴾

او نه دې کېږي (په سختوالي د زړه کې) په شان د هغو کسانو چې ورکړې شوی وو هغوی ته کتاب پخوا له دې څخه، نو اوږده شوه په دوی باندې زمانه، نو سخت شول زړونه د دوی، او ډېر له دوی څخه فاسقان نافرمانان دي.

**تفسیر:** یعنې ایمان همغه دی چې زړونه پرې نرم شي، د نصیحت او د الله تعالی یاد په هغو باندې ډېره اغېزه او اثر واچوي، او ژر یې قبول کړي، پخوا به اهل الکتابو ښه پندونه د خپلو پیغمبرانو له صحبته اخیستل، له څو مودې راهیسې پر هغوی باندې د غفلت خوب غلبه کړې ده، او هر شی له دوی څخه هېر او زړونه یې سخت او په اکثرو د دوی کې ډېره سرکشي او یاغیتوب پېښ شوی دی، نو اوس د مسلمانانو وار راغلی دی، چې هغوی د خپل مبارک پیغمبر له صحبت څخه ښې ګټې وکړي، او په نرم زړه کامل انقیاد او د ذکر الله په پوره خشوع او زیات خضوع سره د الله تعالی او د ده د رسول اوامر او احکام ومني، او په ښو صفاتو سره متّصف شي، او هغه لوی مقام ته وخیژي چې هلته تر اوسه پورې بل کوم امّت نه دی ختلی.

اعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ يُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۱۷﴾

پوه شئ تاسې چې بېشکه الله ژوندۍ کوي زرغونوي ځمکه وروسته له موت، وچوالي د هغې (په باران سره)، په تحقیق ښکاره بیان کړي دي مونږ تاسې ته دلائل او آیتونه لپاره د دې چې تاسې عقل په کې وچلوئ (او کار ترې واخلئ په دنیوي او اخروي امورو خپلو کې).

**تفسیر:** یعنې د عربو خلق جاهل او ګمراه او داسې وو لکه مړه ځمکه، اوس الله جل جلاله هغوی ته ایمان وروبانښه، او د علم په روح سره یې ژوندي او په دوی کې یې ګرد کمالات پیدا کړل، لنډه یې دا چې کوم (روحًا) مړ انسان لره نه ښایي چې مأیوس بې هیلې او ناامید شي، ځکه چې که په رښتیا سره توبه وکاږي؛ نو بیا الله تعالی د هغه په کالبد کې د ژوندون روح ننباسي.

إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ﴿۱۸﴾

بېشکه خیرات ورکوونکي سړي او خیرات ورکوونکې ښځې او هغه څوک چې قرضونه یې کړي دي له الله سره قرض نېک؛ دوچند به کړ شي دوی ته (ثواب د قرض د هغوی)، او وي به دوی ته اجر ثواب ډېر لوی (چې جنّت دی).

تفسیر: یعني هغه څوک چې د الله جل جلاله په لاره کې په خالص نیت سره د هغه د خوښې په خاطر خرڅ وکړي، او خپل مال ولګوي، او پرته له الله جل جلاله څخه د کومې بدلې یا د شکریې غوښتونکی نشي؛ ګواکې هغه پاک الله تعالی ته پور ورکوي، نو ډاډه اوسئ! چې د هغه ورکړه به نه ضایع کیږي، بلکه څو چنده به بېرته ورګرځي.

وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ ۖ وَالشُّهَدَاءُ عِندَ رَبِّهِمْ لَهُمْ أَجْرُهُمْ وَنُورُهُمْ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِآيَاتِنَا أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١٩﴾

او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی په الله او په (ټولو) رسولانو د دغه (الله)؛ دغه کسان همدوی دي ډېر رښتیني او شاهدان دي (په ورځ د قیامت کې پر دروغ ویونکیو باندې) په نزد د رب خپل، وي به دغو (صدیقانو مؤمنانو) ته اجر د دوی او رڼا د دوی (چې پرې تیریږي به په پل صراط بانـدې)، او هغه کسان چې کافران شوي دي، او نسبت د دروغو یې کـړی دی آیتونو ځمونږ ته؛ هغوی دي یاران ملګري د دوزخ (چې اصلاً د همدوی لپاره جوړ شوی دی).

تفسیر: محقّق مترجم (رحمه الله) په ښکاره سره د (الشهداء) عطف په (الصدّیقون) باندې منلی دی، یعنې هغه خلق چې په پاک الله او د ده په رسول پوره یقین لري، او د دې یقین اثر د دوی له اعمالو او احوالو څخه هم ښکاري، نو دوی رښتیني او پاخه ایمانداران دي، او د الله تعالی په مخ کې هم دوی د شاهدانو په ډول د نورو حال او احوال هم راښکاروي، لکه چې د «البقرة» د سورت په (۱۷) رکوع (۱۴۳) آیت ځمونږ د دغه مقدّس تفسیر کې داسې یو آیت راغلی دی: ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾ په آخرت کې به داسې ریښتونکیو ایماندارانو لره د دوی د عمل او د ایمان له درجې سره سم ثواب او رڼا ورښله کیږي.

اعْلَمُوا أَنَّمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا لَعِبٌ وَلَهْوٌ وَزِينَةٌ وَتَفَاخُرٌ بَيْنَكُمْ وَتَكَاثُرٌ فِي الْأَمْوَالِ وَالْأَوْلَادِ ۖ كَمَثَلِ غَيْثٍ أَعْجَبَ الْكُفَّارَ نَبَاتُهُ ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَكُونُ حُطَامًا ۖ وَفِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ شَدِيدٌ وَمَغْفِرَةٌ مِّنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٌ ۚ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ ﴿٢٠﴾

پوه شئ تاسې (ای تشې دنیا خوښوونکیو) چې بېشکه دغه ژوندون لږ خسیس خوشې بې فائدې لوبې، او بېکاره عبث مشغولتیا، او زینت ښایست، او فخر لویي کول دي په منځ ستاسې کې یو په بل باندې، او ډېروالی دی په اموالو او (ډېروالی دی) په اولاد کې، په مثل (د نباتاتو) د باران دي (چې پر تېزې ځمکې باندې اوري)، ښه ښکاري ناشکرانو کوونکو لره زرغونه د دغه (باران)، بیا وچه شي (دا ګیا)، نو پس وبه وینې (ای کتونکیه) هغه (زرغونه یا نبات) زېړ شوی (پس له شینوالي د هغه)، بیا شي هغه (وچ واښه) مات تار په تار، او په آخرت کې عذاب شدید سخت دی (لپاره د هغه چا چې منګولې یې ولګولې په تشو دنیوي امورو، او آخرت ته یې شا کړه)، او مغفرت ښښنه ده لویه له (جانبه) د الله، او رضوان رضاء خوښي ده (هغه چا ته چې مشغول شي په اخروي امورو او دنیا ته شا کړي)، او نه دی (دغه) ژوندون لږ خسیس مګر دی متاع اسباب د غرور د غولېدلو (چې نه پاتې کیږي).

تفسیر: هر سړی د خپل عمر په اول کې بازي او لوبې کوي، بیا په جوړښت ډول او فېشن او سینګار پسې ګرځي، بیا د خپل پت او د اعتبار په زیادت پسې لوېږي، بیا یې د مړینې ورځ نژدې کیږي، د مال او اولاد په فکر کې ډوب تللی وي، چې وروسته له ما ځنې به ځما د کور، کهول، آل اولاد حال او ژوندون څرنګه وي؟ مګر دا ګرد ساز او سامان، فکرونه

او جاجونه فاني او زائل دي، لکه چې د کښتو رونق او بهار د څو ورځو له مخې وي، بيا ژېړ شي او وچېږي، او انسانان او حيوانات يې ګوډ او ماتوي، او ذره ذره کوي يې، او د هغه د سينګار او رونق نوم او نښه نه پاتې کيږي، د دنيا د ژوندون حال او احوال او د هغه ساز او سامان هم داسې وګڼئ، چې سړی د هغه په عارضي باغ او بهار باندې غوليږي او تېروځي، او خپل انجام پرې خرابوي، ځکه چې وروسته له مرګه هيڅ يو له دې شيانو څخې نه په کاريږي، او هلته يوازې هغه ايمان او ښې چارې او صالحه اعمال په کاريږي او په درد يې خوري، چې سړي په دنيا کې کړي وي، او که کور يې ورانيږي، په آخرت کې هغه لره د الله تعالی خوښي او رضامندي لاس ته نه ورځي، هغه کسان چې د ايمان له دولت څخه بې برخې وي، او د کفر او عصيان او د ګناهونو له پيټي سره آخرت ته حاضريږي؛ هغه ته به سخت عذاب وررسيږي، او هغو مړيو ته چې سره د لرلو د ايمان يې خپلو ايماني چارو کې څه لنډوالی او کوتاهي کړي وي؛ د هغوی له قصور سره برابره سزا ورکوله کيږي، او بيا يې پاک الله بښي، د دنيا خلاصه هغه وه، او د آخرت مجموعه دا ده:

سَابِقُوٓا۟ إِلَىٰ مَغْفِرَةٍ مِّن رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا كَعَرْضِ ٱلسَّمَآءِ وَٱلْأَرْضِ أُعِدَّتْ لِلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ بِٱللَّهِ وَرُسُلِهِۦ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ ٱللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَآءُ ۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلْفَضْلِ ٱلْعَظِيمِ ﴿۲۱﴾

تلوار وکړئ وځغلئ تاسې (ای مؤمنانو !) طرف د مغفرت او ښښنې ته چې له (جانبه) د رب ستاسې ده، او (تلوار وکړئ وځغلئ تاسې ای مؤمنانو هغه) جنّت ته چې پلنوالی يې (داسې) دی لکه پلنوالی د اسمان او د ځمکې، تيار کړی شوی دی لپاره د هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی په الله او (ايمان يې راوړی دی) په رسولانو د دغه (الله)، دغه (موعود جنّت، مغفرت، رضاء، لقاء) فضل د الله دی چې عطا کوي يې هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د عطا يې، چې مؤمنان دي)، او الله څښتن د فضل عظيم دی.

**تفسير:** يعنې له موت او مړينې څخه پخوا د هغو شيانو په راغونډولو پسې ولوېږئ چې د هغو په وسيله ستاسې ګناهونه وبښل شي، او جنت مو په برخې شي، په داسې ښو چارو کې لټي کول او سستي کول ښه کار نه دی، او وړاندېوالی وکړئ وځغلئ تاسې ای مؤمنانو ! هغه جنّت ته چې پلنوالی يې داسې دی لکه پلنوالی د اسمان او د ځمکې، يعنې که ځمکه او اسمان دواړه سره يو ځای کړل شي؛ نو له هغو څخه به د جنّت عرض او سور جوړيږي، الله تعالی ښه پوهيږي چې د هغه طول اوږدوالی به څومره وي، تيار کړی شوی دی دغه جنّت لپاره د هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی په الله او ايمان يې راوړی دی په رسولانو د الله، دغه فضل د الله دی چې عطاء کوي يې هغه چاته چې اراده يې وفرمايي، يعنې ايمان او ښه عمل خو بېشکه د جنّت د حصول وسيله ده، ليکن په حقيقت سره به د جنّت موندل د الله تعالی په فضل او کرم پورې اړه لري، که د هغه فضل او کرم نه وی، نو له سزا څخه ځان بچ کول سخت دي، او جنّت ته رسېدل خو جلا خبره ده.

مَآ أَصَابَ مِن مُّصِيبَةٍ فِى ٱلْأَرْضِ وَلَا فِىٓ أَنفُسِكُمْ إِلَّا فِى كِتَٰبٍ مِّن قَبْلِ أَن نَّبْرَأَهَآ ۚ

نه رسيږي هيڅ مصيبت آفت غم په ځمکه او نه ستاسې په ځانونو کې مګر هغه خو ليکلی شوی دی په کتاب (لوح محفوظ) کې پخوا له هغې څخه چې پيدا کړی وي مونږ هغه (په دنيا کې).

**تفسير:** په دنيا او نړۍ کې هغه عمومي آفتونه لکه قحط او سوکړه، زلزله، وبا او نور چې راځي، او هغه غمونه او آفتونه لکه رنځ، درد، ناروغي او نور چې په ځينو سړيو کې ليدل کيږي؛ دا ګرد د الله تعالی په علم قديم کې شته، او فيصله يې صادره شوې ده، او په لوح محفوظ کې ليکلې شوې ده، چې سم له هغه سره دا ګردې پېښې واقع کيږي، او د يوې ذرې په اندازه او مېچ هم په هغه کې څه شی نه لږ او نه ډېريږي.

إِنَّ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ﴿٢٢﴾

بېشکه دا (اندازه پخوا له پیدا کولو) پر الله ډېره آسانه ده.

تفسیر: یعنې الله تعالی د هر شي علم په ذاتي ډول سره لري، او په زحمت او تکلیف یې نه زده کوي، نو بیا هغه ته د علم محیط سره سم د ګردو واقعاتو او حوادثو لیکل پخوا له وقوع څخه په هغه کتاب (لوح محفوظ) کې آیا کوم مشکل کار دی؟ بلکه ډېر ورته سهل او آسان دی، او خبر کړئ تاسې الله أکرم شأنُه وأعظمَ برهانُه په دې سره:

لِّكَيْلَا تَأْسَوْا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ وَلَا تَفْرَحُوا بِمَا آتَاكُمْ

لپاره د دې چې خفه نشئ تاسو پر هغه څه چې فوت شوي له لاسه وتلي دي د تاسو، او خوشاله نشئ تاسې په هغه څه چې تاسې ته یې درکړي وي (په خوشحالتیا د کبر او هوا سره).

تفسیر: په دې حقیقت مو ځکه تاسې ته خبر درکړی دی چې تاسې ښه وپوهېږئ: هغه فائدې چې تاسې لره مقدّرې دي؛ هغه به ضرور در رسېدونکي وي، او هغه چې مقدّرې نه دي؛ هیڅکله په لاس نه درځي، هر هغه شی چې د الله تعالی په قدیمي علم کې مقرّر او ټاکلی شوی دی؛ هم هغسې کېدونکی دی، نو ځکه که کومه ګټه د چا لاس ته ونه رسیږي؛ ښایي چې پرې خفه او مضطرب نه شي !، او هغه شی یې چې په برخه ورسیږي؛ په هغه باندې ځان تریخ او تریو او مضطرب نه کړي، بلکه د مصیبت او ناکامی په وخت کې صبر او تسلیم، او د هوسایی او کامیابی په وخت کې دې شُکر او حمد ووایي.

وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخْتَالٍ فَخُورٍ ﴿٢٣﴾ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ وَيَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ

او الله نه خوښوي هر متکبّر (په نعمت باندې) او فخر کوونکی (په نورو باندې). هغه کسان چې (همدوی پخپله) بخل کوي، او (هم) امر کوي خلقو ته په بخل سره (نو دوی لره سخت عذاب ورکوي).

تفسیر: د زیاترو متکبّرو مالدارانو حالت داسې دی چې لویي کوي، خو د لګولو په وخت کې به یو پول او پیسه هم د دوی له جیبه څخه نه راوځي، په کوم یوه ښه کار کې به دی پخپله د ورکولو توفیق نه لري، مګر پخپلو ویلو او کولو سره نورو ته دا ورښیي چې په موقع کې خرڅ کول د هغو متوکلانو او همّتناکو کار دی چې له پیسو سره دومره زیاته مینه او محبت نه کوي، او پوهیږي چې سختي او نرمي او نور ګرد هغه علی الاطلاق مالك له لوري دي.

وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٢٤﴾

او هر هغه چې مخ یې وګرځاوه (له احکام الله نه)؛ نو بېشکه الله همغه غني بې پروا په صفتونو سره، ښه ستایلی شوی دی.

تفسیر: یعنې ستاسې له خرڅ کولو او نه کولو څخه هغه ته هیڅ یوه ګټه نه وررسیږي، هغه خو بې نیاز او بې پروا ذات دی، ګردې ښېګڼې (فائدې) او صفات علی وجه الکمال د ده په ذات کې سره ټول شوي دي.

لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ

خامخا په تحقیق لېږلي وو مونږ پیغمبران خپل سره له ښکاره وو دلائلو او نازل کړی وو مونږ له هغوی سره کتاب او میزان تله (قواعد د عدل) لپاره د دې چې ودریږي خلق په انصاف باندې.

**تفسیر:** ښايي چې له دې کتاب او ميزان او تلې څخه د ټللو ټله مراد وي، چې په هغې سره خپل حقوق اداء کوي، او راکړه ورکړه کوي، او د هغې په وسيلې سره عدل او انصاف کيږي، يعنې کتاب الله ځکه نازل شوی دی، چې خلق په عقائدو، اخلاقو، اقوالو کې د عدل او انصاف په سمه لاره لاړ شي، او د افراط او تفريط څخه بالکل ځانونه وژغوري، او ټله يې ځکه ټاکلې وه، چې په پلورلو او پېرودلو (بيع شراء) او نورو معاملاتو کې د انصاف د تلې پلې چابړې هيڅ لوري ته ښکته او پورته نه وي، او ممکن دي چې له تلې څخه شريعت مراد وي، چې د ګردو قلبيه وو او قالبيه وو اعمالو حُسن او قُبح مونږ ته په ښه ډول سره راښيي، والله أعلم.

وَاَنۡزَلۡنَا الۡحَدِيۡدَ

او رالېږلې ده مونږ اوسپنه.

**تفسیر:** يعنې الله تعالی «اوسپنه» پخپل قدرت پيدا کړه، او په ځمکه کې يې د هغه (معادن) کېښودل.

فِيۡهِ بَاۡسٌ شَدِيۡدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ

چې په دې کې سخت جنګ ډېر قوت دی، او (په کې ډېرې) منافع ګټې دي لپاره د خلقو.

**تفسیر:** يعنې چې له دغې اوسپنې څخه د جګړې او جنګ وسلې او نور شيان جوړيږي، او د خلقو زيات کارونه په هغې باندې چليږي، او ګرد مدني او عصري امر پرې مربوط دی.

وَلِيَعۡلَمَ اللّٰهُ مَنۡ يَّنۡصُرُهٗ وَرُسُلَهٗ بِالۡغَيۡبِ

او بل لپاره د دې چې عالم شي الله (په علم ظاهري سره) په هغه چا باندې چې مرسته کوي له ده سره او له رسولانو د ده سره په غيبو سره (بې له ليدلو).

**تفسیر:** يعنې هغه کسان چې د اسماني کتاب په لاربنوونه په سمه لاره رانشي، او د انصاف او نياو ټله په دنيا کې سمه ونه دروي، که ضرورت پېښ شي؛ نو هغوی ته جزاء او ګوشمالي ورکوله کيږي، او په ظالمانو معاندينو، مخالفينو او نورو کږو تلونکيو باندې به د الله تعالی او د ده د رسول د احکامو وقار او اقتدار قائميږي، په هغه وخت کې د توري له موټي څخه نيول او په يوه خالص اسلامي جهاد کې د داخلېدو وار راځي، چې په هغه کې به له همدې اوسپنې څخه کار اخيستل کيږي، په دې وخت کې به دا خبره راښکاره کيږي، چې کوم يو بنده وفادار دی؟ چې بې له ليدلو د الله تعالی د هغه مينه او محبّت او د آخرت په راتللو او د اجر او ثواب او په ګناه او عقاب باندې په غياب سره ايمان، يقين، او عقيده لري؟ او د هغه د دين او د هغه د رسول او د کتاب متابعت او اعانت کوي؟.

اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيۡزٌ ﴿۲۵﴾

بېشکه الله ډېر قوي دي (په نصرت د احباوو) ښه غالب دی (په ذلّت د اعداوو).

**تفسیر:** د جهاد تعليم او ترغيب د دې لپاره نه دی ورکړی شوی چې الله تعالی ستاسې مرستې، معاونت، او امداد ته څه اړتيا او احتياج لري، ځکه چې هغه لوی او بې نياز او بې پروا پروردګار ته دا بې وځلی او کمزوری مخلوق څخه مرسته او کومک ورسولی شي؟ او هغه به دوی ته څه اړتوب ولري؟ هو! دومره ده چې الله تعالی له داسې امر څخه ستاسې د وفادارۍ امتحان او ازموينه کوي، تر څو هغو بندګانو ته چې دوی په ازموينه کې بريالي شي، لوړ او اعلی مقامات ورکړي.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَٰهِيمَ وَجَعَلْنَا فِى ذُرِّيَّتِهِمَا ٱلنُّبُوَّةَ وَٱلْكِتَٰبَ

او خامخا په تحقيق لېږلي وو مونږ نوح او ابراهيم، او ګرځولي وو مونږ په اولاده د دغه (نوح او ابراهيم کې) نبوّت پيغمبري (او نازل کړی وو مونږ په اولادو د دوی کې) کتاب.

**تفسير:** يعنې د پيغمبری او کتاب لپاره مونږ د دوی دواړو له اولادې څخه سړي غوره کړل، تر څو وروسته له دوی څخه دا لوی دولت د هغوی د ذريّت او خپلخانې او ځوځات څخه بهر لاړ نشي.

فَمِنْهُم مُّهْتَدٍ ۖ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَٰسِقُونَ ﴿٢٦﴾

نو ځينې له دوی لار موندونکي دي، او ډېر له دوی څخه فاسقان نافرمانان وتونکي دي (له لارې حقې نه).

**تفسير:** يعنې هغو خلقو لره مو چې لېږلي وو، يا داسې يې وبولئ چې د دې دواړو له اولادې ځنې بعضې په لاره وو، او زياتره کسان نافرمانان ثابت شول.

ثُمَّ قَفَّيْنَا عَلَىٰٓ ءَاثَٰرِهِم بِرُسُلِنَا

بيا وروسته ولېږل مونږ پر آثار قدمونو د هغوی باندې نور رسولان خپل.

**تفسير:** يعنې وروستنيو رسولانو د هغو پخوانيو پيغمبرانو په پل باندې تګ کاوه، ځکه چې په اصولي حيثيت کې د ګردو رسولانو تعليم او ښوونه سره يوه وه.

وَقَفَّيْنَا بِعِيسَى ٱبْنِ مَرْيَمَ وَءَاتَيْنَٰهُ ٱلْإِنجِيلَ ۖ

او وروسته راووست مونږ عيسی ځوی د مريمې، او ورکړ مونږ ده ته انجيل.

**تفسير:** يعنې الله تعالی په آخر کې د بني اسرائيلو د انبياوو خاتم يعنې عيسی عليه السلام ته انجيل ورکړ، او استاځی يې وټاکه، او هغوی ته يې واستاوه.

وَجَعَلْنَا فِى قُلُوبِ ٱلَّذِينَ ٱتَّبَعُوهُ رَأْفَةً وَرَحْمَةً ۚ

او ګرځولی وو مونږ په زړونو د هغو کسانو کې چې متابعت يې کړی وو د دغه (عيسی) رأفت، نرمي، او رحمت مهرباني.

**تفسير:** يعنې د عيسی المسيح عليه السلام ملګري چې په واقعي ډول د هغوی په طريقې باندې تلل، د هغوی په زړونو کې پاک الله نرمي ايښې وه، دوی د الله تعالی له مخلوقاتو سره د محبّت او شفقت په ډول سلوک کاوه، او پخپلو منځونو کې به هم تل په مهرباني اوسېدل، او ښه ژوندون يې سره درلود.

وَرَهْبَانِيَّةً ٱبْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَٰهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ٱبْتِغَآءَ رِضْوَٰنِ ٱللَّهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا ۖ

او (پيدا کړی وو دوی له ځانه) رهبانيت (ترک د دنيا) چې نوی يې له ځانه جوړ کړی وو دوی هغه (رهبانيت)، نه وو مقرّر کړی مونږ دغه (رهبانيت) په دوی باندې مګر (دوی غوره کړی وو رهبانيت) لپاره د خوښي د الله، پس ونه کړ دوی رعايت د دې لکه چې حق د رعايت يې وو.

تفسیر: یعني په وروستنیو زمانو کې د مسیح عیسی علیه السلام تابعین د بې دینو باچاهانو له لاسه په تنګ شول، او د دنیا له مخمصو څخه وویرېدل، او د رُهبانیت یو بدعت یې وویست، چې د هغه حکم د الله تعالی له لوري نه دی شوی، مګر د رُهبانو نیت هسې وو چې د پاک الله خوښي حاصله کړو، خو بیا یې هغه په پوره ډول سره پای ته ونشو رسولی.

شاه صاحب لیکي: «دا د فقیرئ او تارک الدنیا کېدلو رسم پرنګیانو (نصاری) ایستلی دی، دوی به په ځنګلو کې یوه تکیه جوړوله، او هلته به کېناستل، نه به یې ښځه لرله، او نه به د اولاد په فکر کې لوېدل، شپه او ورځ به یې عبادت کاوه، له خلقو سره به یې خبرې اترې نه درلودې، او له هغوی څخې به لرې تښتېدل، او حال دا دی چې الله تعالی خپلو بندګانو ته داسې حکم نه دی کړی چې دنیا داسې پرېږدئ، او له ځېلمې وزګار کېنئ، نو کله چې دوی پخپلو ځانونو باندې د دنیا ترک نوم کېښود، بیا نو په پټه او پردې کې د دنیا غوښتنه ډېره لویه ګناه ده»، د اسلامي حق شریعت له فطري اعتدال څخه پر ته (متجاوز) د داسې رهبانیت منع فرمایلې ده.

تنبیه: «بدعت» هغه کار ته وایه شي چې د هغه اصل په پاک قرآن او احادیثو او په هغو پېړیو (قرنو) کې چې مشهود لها بالخیر دی؛ نه وي، او هغه د دین او د ثواب کار وګاڼه شي.

فَـَٔاتَيۡنَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مِنۡهُمۡ أَجۡرَهُمۡۖ وَكَثِيرٞ مِّنۡهُمۡ فَٰسِقُونَ ۲۷

پس ورکړ مونږ هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی وو (په محمّد) له هغو څخه اجر ثواب د دوی، او ډېر له دوی څخه فاسقان نافرمانان دي.

تفسیر: یعني په دوی کې اکثر نافرمانان دي، نو ځکه سره له دې چې پر خاتم الأنبیاء صلی الله تعالی علیه وعلی آله وصحبه وسلّم پخپلو زړونو کې یقین او باور لري، خو بیا هم پر دوی ایمان نه راوړي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَءَامِنُواْ بِرَسُولِهِۦ يُؤۡتِكُمۡ كِفۡلَيۡنِ مِن رَّحۡمَتِهِۦ وَيَجۡعَل لَّكُمۡ نُورٗا تَمۡشُونَ بِهِۦ وَيَغۡفِرۡ لَكُمۡۚ وَٱللَّهُ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ۲۸

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو پر پخوانیو انبیاوو)! وویرېږئ تاسې (له عذابه) د الله، او ایمان راوړئ په رسول د دغه (الله چې محمد دی)، چې درکړي تاسې ته دوه حصې برخې له رحمته خپله، او چې وګرځوي تاسې لره یوه رڼا چې تلل به کوئ په هغې سره (پر صراط)، او وبښي تاسې ته (ګناهونه ستاسې)، او الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعني ای کتابیانو! د دغه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم تابع اوسئ!، تر څو دا نعمتونه ومومئ، او ستاسې تېرې خطاوې وبښلی شي، او د ښه عمل او هر کار دوچنده ثواب در ورسیږي، او سره له خپلې رڼا هر چېرې وګرځئ، یعني ستاسې ښه د ایمان او د تقوی په وسیله روڼ او نوراني شي، او په آخرت کې هم دا رڼا ستاسې په مخ او ښي څنګ کې له تاسې سره هر چېرې لاړه شي.

لِّئَلَّا يَعۡلَمَ أَهۡلُ ٱلۡكِتَٰبِ أَلَّا يَقۡدِرُونَ عَلَىٰ شَيۡءٖ مِّن فَضۡلِ ٱللَّهِ وَأَنَّ ٱلۡفَضۡلَ بِيَدِ ٱللَّهِ يُؤۡتِيهِ مَن يَشَآءُۚ وَٱللَّهُ ذُو ٱلۡفَضۡلِ ٱلۡعَظِيمِ ۲۹

لپاره د دې چې وپوهیږي اهل د کتاب (په دې) چې قادران نه دي دغه (منکران) په هیڅ شي له فضل د الله نه، او (بل عالمان شي دغه منکران په دې) چې بېشکه فضل لویې په لاس د الله

کې ده، ورکوي يې هر هغه چا ته چې اراده وفرمايي (د ورکولو يې)، او الله خاوند د فضل ډېر لوی دی.

**تفسير:** يعنې اهل الکتابو د پخوانيو پيغمبرانو خبرې او قصې اورېدلي، او خپل افسوسونه او ارمانونه يې داسې ښکارول چې: کاشکې مونږ هم د هغو په پېړيو کې اوسېدی، تر څو مو هغه درجې او مرتبې موندلي وی، اوس مونږ ته د هغو برکاتو موندل ګران دي، نو دلته داسې وايه شي چې: هغه پيغمبران هم د الله تعالی له لوري لېږلی شوي وو، او هغه دوچنده ثواب ورکول هم د پاک الله له درباره مرحمت کيږي، او حال دا دی چې اوس همغه الله تعالی شته، او د هغه د فضل او کمال بحار او سيندونه تر څنډو ډک خاړخوړی بهيږي.

تمت سورة الحديد، بفضل الله المجيد، فله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ المُجَادِلَةِ

«د (المجادلة) سورت مدني دی، (٢٢) آیته (٣) رکوع لري، په تلاوت کې (٥٨) او په نزول کې (١٠٥) سورت دی، وروسته د «المنافقون» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قَدْ سَمِعَ اللَّهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللَّهِ

په تحقيق اورېدله الله خبره د هغې (ښځې) چې سوال او ځواب يې کاوه له تا سره د خپل خاوند په شان کې، او شکايت يې کاوه الله ته.

تفسير: پخوا له اسلام څخه که کوم سړي خپلې ښځې ته ويل چې ته مې مور يې؛ نو دا خبره داسې ګڼله کېده چې هغه د ژوندون تر آخره پورې په هغه باندې حرامه شوه، او بيا به هيڅ يو داسې صورت هغه ته نه وو چې هغه ښځه يې بيا ښځه شي، څمونږ د رسول أکرم صلى الله عليه وسلم په زمانه کې يو مسلمان چې نوم يې «أوس بن الصّامت» رضي الله تعالى عنه وو، خپلې ښځې ته چې «خوله بنت ثعلبه» رضي الله تعالى عنها نومېده؛ همداسې وويل، هغه ښځه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخ کې ودرېده، او دا قصه يې ورته وکړه، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: د دې معاملې په نسبت لا د الله تعالى له لورې ماته کوم خاص حکم نه دی رارسېدلی، خو زه خيال کوم چې ته په هغه باندې حرامه شوې يې، او وروسته له دې څخه تاسې سره ګډه نه شئ اوسېدلی، هغې ښځې په نارو او چغو باندې پيل (شروع) وکړ، او داسې به يې ويل چې: «څما ودان کور وران او واړه ماشومان مې خوار او پرېشان شول»، کله به يې له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره داسې جګړې کولې چې: «يا رسول الله ! د هغه مقصد د دې الفاظو له ويلو څخنې د طلاق اراده نه وه»، کله به يې د الله تعالى په دربار کې ژړا او انګولا کوله، او داسې به يې ويل: «آ اله العالمينه ! زه د خپل يوازېتوب او د دې مصيبت شکايت ستا دربار ته کومه، ته مې په عرض او فرياد ورسه !، که نه دا څما ماشومان که له ما سره پاتې شي؛ له لوږې څخه مري، او که يې هغه ته ورکړم؛ نو څما د نه پاللو او نه ساتلو څخه له کاره وځي او ضايع کيږي، اى الله تعالى ! ته پخپله د آخر الزّمان نبي په خوله څما د ژغورنې (بچ کېدنې) يوه لاره راوښيه !، او څما دا مشکل او غوټه را وپرانيځه !» نو په دې وخت کې دا آيات نازل او د «ظهار» احکام ورانعام شول.

تنبيه: «ظهار» په شريعت کې دېته وايي چې: د خپلې ښځې کومه (عضو) د ابديه محرّماتو: مور، خور، او نورو کومې عضوې سره تشبيه ورکړي، چې د هغه کل ده ته حرام او ناروا وي، لکه چې داسې ووايي چې: «أنت علي كظهر أمّي» «ته دې پر ما باندې داسې يې لکه څما د مور شا»، د «ظهار» د احکامو تفصيلات دې په فقهي کتابونو کې وکتل شي !.

وَاللَّهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا ۚ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ①

او الله اورېده سوال او جواب ستاسې، بېشکه چې الله ښه اورېدونکی دی (د ټول اقوالو) ښه کتونکی دی (د ګردو احوالو).

تفسیر: یعنې الله تعالی هر څیزویني او اوري يې، هغه خبرې اترې چې ستاسې او د هغې ښځې په منځ کې وشوې؛ نو هغه به يې ولې نه وي اورېدلې، محققه ده چې پاک الله د هغې مصیبتناکې ښځې په شکایت چې فریاد يې کاوه؛ ورسېده، او د همېشه لپاره يې د داسې حوادثو د ژغورنې لاره په لاندې ډول سره څرګنده کړه !.

الَّذِينَ يُظٰهِرُونَ مِنكُم مِّن نِّسَآئِهِم مَّا هُنَّ أُمَّهٰتِهِمْ ۖ إِنْ أُمَّهٰتُهُمْ إِلَّا الّٰٓـِٔى وَلَدْنَهُمْ ۚ وَإِنَّهُمْ لَيَقُولُونَ مُنكَرًا مِّنَ الْقَوْلِ وَزُورًا ۚ

هغه کسان چې ظهار کوي (مور وايي) له تاسې څخه ښځو خپلو ته؛ نه کېږي دغه ښځې (په بللو د دوی سره) میندې د دوی، نه دي میندې د دوی مګر هغه ښځې دي چې څېږولې يې وي دوی، او بېشکه دوی خامخا وايي يوه خرابه (نااشنا خبره) له خبرې او دروغ وايي.

تفسیر: یعنې ماندینه (منکوحه) کله چې دی يې نه دی څېږولی، نو څرنګه د ده مور کېدی شي؟ او څنګه به په محض يوه تشبیه سره د تل لپاره په ده باندې لکه حقیقي مور غوندې حرامېږي؟، هو ! که کوم سړی د خپلې بې تمیزۍ لامله داسې يوه دروغ او چټي او نامعقوله خبره وکړي؛ نو د هغې بدله دا ده چې کفّاره دې ورکړي، بیا که هغې ته ورنژدې شي، یا ورنژدې نشي؛ هغه ښځه د ده ښځه ده، او له ظهاره طلاق نه اوړي.

وَإِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُورٌ ﴿٢﴾

او بېشکه الله خامخا ښه عفو کوونکی ښه مغفرت کوونکی دی.

تفسیر: یعنې هغه حرکتونه چې د جاهلیت په زمانه کې شوي دي؛ هغه ګرد معاف دي، اوس وروسته له هدایته هسې مه کوئ !، که په غلطه له تاسې څخه داسې ګناه کیږي؛ نو ژر تر ژره توبه وباسئ !، او پخوا له دې څخه چې خپلې ښځې ته ورنژدې شئ؛ د «ظِهار» کفارت اداء کړئ !.

وَالَّذِينَ يُظٰهِرُونَ مِن نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِّن قَبْلِ أَن يَتَمَآسَّا ۚ

او هغه کسان (چې مور وايي) ظهار کوي له ښځو خپلو نه، بیا راګرځي دوی (ماتولو د) هغې خبرې ته (چې ويلې يې وي)؛ نو لازم دي دوی ته ازادول د مریي پخوا د هغه چې يو بل سره مسه کړي (په وطي سره).

تفسیر: یعنې د دغه لفظ «أنت علي كظهر أمي» له ويلو څخه د مېړه او ښځې مسه کول او يو پر بل باندې لاس اچول او صحبت کول حرامېږي، کله چې يو مریي آزاد کړي، یا د دوو میاشتو د روژې څخه فارغ شي، نو بیا يو بل ته سره نژدې کېدی شي.

ذٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِۦ ۚ

دغه (حکم په کفّارت سره) پند درکاوه شي تاسې ته په دغه (حکم) سره.

تفسیر: د کفارې مشروعیت ستاسې د تنبیه او پند لپاره دی، چې بیا داسې غلطي ونه کړئ !، او نور هم له هسې غلطیو څخه ځانونه وساتئ !.

وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرٌ ③

او الله په هغه څه چې کوئ تاسې ښه پوهیدونکی دی (نو جزاء به پرې درکړي).

تفسیر: یعنې سم د تاسې له احوال سره احکام درلیږي، او په دې باندې پوهیږي چې تر کومې اندازې پورې تاسې په هغو باندې عمل کوئ.

فَمَنۡ لَّمۡ يَجِدۡ فَصِيَامُ شَهۡرَيۡنِ مُتَتَابِعَيۡنِ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّتَمَآسَّا ۚ فَمَنۡ لَّمۡ يَسۡتَطِعۡ فَاِطۡعَامُ سِتِّيۡنَ مِسۡكِيۡنًا ؕ

پس هغه چا چې ونه موند (مريي) نو (پرې لازم) روژه نیول دي د دوو میاشتو پرله پسې، پخوا له هغه چې یو بل سره مسه کړي (په وطي سره)، پس هغه چې توان نه لري (د روژې نیولو)؛ نو (پرې لازم) طعام ورکول دي شپېتو مسکینانو ته.

تفسیر: یعنې که د غلام آزادولو توان نه لري؛ نو پرله پسې دوه میاشتې داسې روژې دې ونیسي چې په کې بې له عُذره هیڅ یو ډیل او پرېکړه واقع نشي، که په روژه نیولو باندې یې هم توان نه رسیږي؛ نو شپېتو تنو اکربانو او فقیرانو ته دې طعام او خواړه ورکړي، د دې مسئلې نور تفصیلات دې په فقهي کتابونو کې وکتل شي !.

ذٰلِكَ لِتُؤۡمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَرَسُوۡلِهٖ ؕ

دغه (تخفیف په کفّاره کې) لپاره د دې دي چې ایمان راوړئ تاسې په الله او په رسول د دغه (الله).

تفسیر: یعنې د جاهلیت د زمانې خبرې پرېږدئ !، او د الله تعالی په حکمونو باندې ټک وکړئ، او هسې چارې وکړئ چې مؤمن لره ښايي، او د مؤمن له شان څخه وي.

وَتِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ ؕ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ④ اِنَّ الَّذِيۡنَ يُحَآدُّوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ كُبِتُوۡا كَمَا كُبِتَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِهِمۡ وَقَدۡ اَنۡزَلۡنَاۤ اٰيٰتٍۢ بَيِّنٰتٍ ؕ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ مُّهِيۡنٌ ⑤

(دا مذکوره احکام) حدونه د الله دي (معین کړی شوي)، او کافرانو ته عذاب ډېر دردناک دی. بېشکه هغه کسان چې مخالفت کوي له الله نه او له رسول د دغه (الله) څخه؛ خوار هلاک به کړل شي دوی لکه خوار هلاک کړی شوي وو هغه (کسان) چې پخوا له دوی څخه وو، او په تحقیق نازل کړي دي مونږ دلائل روښانه، او کافرانو منکرانو ته عذاب سپکوونکی، رسوا کوونکی دی (په دنیا یا عُقبا کې).

تفسیر: یعنې مسلمانانو ته نه ښايي چې د الله تعالی له ټاکلیو حدودو څخه تجاوز وکړي، پاتې شول کافران چې د الله تعالی د حدودو څه پروا نه کوي، او پخپل فکر او غوښتنه سره حدود ټاکي؛ نو تاسې هغوی پرېږدئ چې هغوی لره درد رسوونکی عذاب دی، داسې خلق به پخوانیو زمانو کې هم ذلیل او خوار وو، اوس هم خوارېږي، د الله تعالی د قُدرت د دلائلو له لیدلو او د رڼو او ښکاره وو نښو له اورېدلو څخه وروسته بیا پخپلو انکارونو باندې کلک پاتې کېدل، د الله تعالی د احکامو عزت او احترام نه کول؛ د خپل ځان د ذلت او سپکتیا او بې احترامۍ او خوارۍ په عذاب کې ځان اخته کولو سره مرادف دي.

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللَّهُ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا

(یاد کړه ای محمده !) هغه ورځ چې ژوندي به پورته کړي الله دوی ټول له قبورو، پس خبر به کړي (الله) دوی په هغو کارونو باندې چې کړي يې وي.

**تفسیر:** يعنې هر هغه کارونه چې دوی کړي وي، د هغو له نتيجې سره به مخامخ کیږي، د دوی به هيڅ عمل غائب کېدونکی نه وي.

أَحْصَاهُ اللَّهُ وَنَسُوهُ ۚ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿٦﴾

شمېرلي ساتلي دي هغه (اعمال) الله، او هېر کړي دي هغوی (هغه اعمال)، او الله پر هر شي باندې ښه شاهد، ښه خبردار دی (نو ور به کړي دوی ته جزاء موافقه).

**تفسیر:** يعنې هغوی ته د هغوی د ګرد عمر کارونه او اعمال هيڅ په ياد هم نه دي پاتې شوي، يا هغوی ته يې هيڅ توجّه نه ده شوې، ليکن د الله تعالی په نزد هغه ګرد يو په يو محفوظ او ساتلي شوي دي، دی به هغه ګرد دفترونه په هغه ورځ کې پرانيځي، او د هر سړي په مخ کې به يې بږدي.

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۖ مَا يَكُونُ مِن نَّجْوَىٰ ثَلَاثَةٍ إِلَّا هُوَ رَابِعُهُمْ وَلَا خَمْسَةٍ إِلَّا هُوَ سَادِسُهُمْ وَلَا أَدْنَىٰ مِن ذَٰلِكَ وَلَا أَكْثَرَ إِلَّا هُوَ مَعَهُمْ أَيْنَ مَا كَانُوا ۖ

آيا نه وينې ته، نه يې خبر چې بېشکه الله ته ښه معلوم دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او هر هغه څه چې په ځمکو کې دي (بلکه خبر يې)، نه به وي پټې خبرې (يو د بله په غوږونو کې) د درې تنو مګر خو دغه (الله) به څلورم د هغوی وي (په اعتبار د علم سره)، او نه به وي پنځه تنه (راز ويونکي) مګر خو دغه (الله) به شپږم د هغوی وي (په اعتبار د علم سره)، او نه به وي لږ له دې (عدد) نه او نه به وي ډېر (له دې عدد نه) مګر خو وي به دغه (الله) له هغو سره (په اعتبار د علم سره) هر چېرې چې وي هغوی.

**تفسیر:** يعنې د الله تعالی علم يواځې د دوی په اعمالو باندې منحصر نه دی، بلکه د هغه په علم کې د اسمان او ځمکې هر وړوکی او لوی شی شته، هيڅ يو مجلس، مشوره، جرګه، مرکه، پټه خبره، ګنګوسه او پس پسې به نه وي چې الله تعالی به په هغوی باندې نه خبريږي، د ده محيط علم په هر شي او هر ځای باندې رسيږي، هر چېرې چې درې سړي سره کېني، او خبرې اترې سره وکړي؛ دوی دې داسې نه ګڼي چې دلته بل څلورم څوک نشته، او پنځه ګوني مرکه دې خيال ونه کړي چې له مونږ سره کوم شپږم اورېدونکی نشته، تاسو وپوهېږئ ! چې درې وي که څلور، يا پنځه، يا له دې څخه لږ يا ډېر، هر چېرې چې وي، او په هر حالت کې چې وي؛ الله تعالی په خپل محيط علم له هغوی سره شته، او هيڅ کله له هغوی څخه جلا نه دی.

ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا عَمِلُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٧﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نُهُوا عَنِ النَّجْوَىٰ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَيَتَنَاجَوْنَ بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَمَعْصِيَتِ الرَّسُولِ

بيا به خبر کړي (الله) دوی په هغو (دنيوي اعمالو) چې کړي يې دي په ورځې د قيامت کې، بېشکه الله په هر څيز باندې ښه پوهېدونکی ښه خبردار دی. آيا نه وينې ته، نه يې خبر؟ هغه کسان

چې منع کړی شوي وو له پټو خبرو څخه، بيا بېرته ور وګرځېدل دوی هغه شي ته چې منع کړی شوي وو دوی له هغه څخه، او پټې خبرې کوي دوی په ګناه سره، او په تجاوز دښمنۍ ظلم سره، او په معصيت نافرمانۍ د رسول (د الله) سره.

تفسير: څمونږ د پيغمبر محمد صلی الله عليه وسلم په مرکه کې دوه مخو او منافقانو به پخپلو منځونو کې پټې خبرې سره کولې، د مرکې په سرېو باندې به يې مسخرې کولې، او عيبونه به يې څرګندول، يو د بل په غوږو کې به يې پس پسی کولې، او د سترګو او د سر په اشارو سره به يې له خپلو ملګرو سره خبرې کولو، چې له دې حرکاتو څخه صادقو او مخلصو مسلمانانو ته تکليف پېښېده، او د رسول الله صلی الله عليه وسلم د خبرې له اورېدلو څخه وروسته به يې ويل چې: «دا مشکل کار څمونږ له لاسه کېدونکی نه دی»، اګر که پخوا له دې څخه د (النساء) په سورت کې له هسې سرګوشۍ او پټې خبرې څخه هم هغوی ته ممانعت شوی وو، خو دغو مؤذي او بې حياء منافقانو سره له هغه د خپلو دې بدو عملونو څخه لاس وانخيست، دا دی اوس بيا د هغه په نسبت داسې ممانعت وشو.

وَإِذَا جَآءُوكَ حَيَّوْكَ بِمَا لَمْ يُحَيِّكَ بِهِ ٱللَّهُ وَيَقُولُونَ فِىٓ أَنفُسِهِمْ لَوْلَا يُعَذِّبُنَا ٱللَّهُ بِمَا نَقُولُ ۚ حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ يَصْلَوْنَهَا ۖ فَبِئْسَ ٱلْمَصِيرُ ⑧

او کله چې راشي دوی تاته (ای محمده !) نو پېشکشي درکوي، سلام اچوي تاته په هغه شي سره چې پېشکشي نه ده مقرره کړې تاته په هغه شي سره الله، او وايي دوی په نفسو زړونو خپلو کې: ولې نه په عذابوي مونږ الله په هغه څه چې وايو يې؟ (نو فرمايي الله) بس دی دوی ته (په تعذيب کې) دوزخ چې ورننوځي په کې، نو بد ځای د ورتللو دی (دا دوزخ).

تفسير: يعني پاک الله له نورو پيغمبرانو سره تاسې ته داسې دعاوې فرمايلي (سلام علی المرسلين)، او (سلام علی عباده الذين اصطفی)، او د مؤمنانو په ژبه يې داسې ويل: «السلام عليك أيها النبي ورحمة الله وبركاته»، مګر ځيني يهودان به کله چې د هغوی حضور ته راتلل؛ نو د «السلام عليك» په عوض به يې په ژوبلې ژبې سره ويل: «السام عليك» چې د هغه معنی داسې ده چې: «تا باندې دې مرګی راشي !» ګواکې د هغو د سلامتيا د دعاء په عوض کې چې الله تعالی هغوی ته ورکړې وو؛ دوی ښېراوې کولې، بيا به يې پخپلو منځونو کې سره ويل: که دی په رښتيا سره پيغمبر دی؛ نو د داسې وينا له ويلو سره سمدلاسه ولې پر مونږ باندې عذاب نه رانازليږي؟ نو د دوی د دې سوال په ځواب کې فرمايي: ﴿حَسْبُهُمْ جَهَنَّمُ﴾ يعنې: تلوار مه کوئ !، داسې کافي پوره عذاب به درورسيږي، چې د هغه په مقابل به د بل عذاب ضرورت نه پاتې کيږي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا تَنَٰجَيْتُمْ فَلَا تَتَنَٰجَوْا۟ بِٱلْإِثْمِ وَٱلْعُدْوَٰنِ وَمَعْصِيَتِ ٱلرَّسُولِ وَتَنَٰجَوْا۟ بِٱلْبِرِّ وَٱلتَّقْوَىٰ ۖ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعني ای مؤمنانو !) کله چې پټې خبرې کوئ تاسې يو له بله سره (په غوږونو کې)؛ پس مه کوئ پټې خبرې پخپلو منځونو کې په ګناه سره، او په تجاوز دښمنۍ ظلم سره، او په معصيت نافرمانۍ د رسول (الله) سره، او پټې خبرې مصلحت کوئ پخپلو منځونو کې په احسان نېکۍ او پرهېزګارۍ سره.

تفسير: يعني صادقو مسلمانانو لره ښايي چې د منافقينو له داسې عاداتو څخه ځانونه وژغوري، او د مسلمانانو پس پسۍ او ګنګوسۍ او مشوره نه ښايي چې د ظلم او عدوان او د الله تعالی او رسول الله صلی الله عليه وسلم د نافرمانۍ لپاره وي، بلکه د نېکۍ، د تقوی او د معقولې او ښې خبرې د اشاعت لپاره وي.

وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿٩﴾

او وویرېږئ له (عذابه د) الله هغه (الله) چې خاص ده ته به تاسې جمع کړی شئ په قیامت کې جزاء ته.

**تفسیر:** یعني تاسې ټول د الله تعالی په مخ کې ودرېږئ، او تر ذرې پورې حساب ورکوئ، له الله تعالی څخه د هیچا پټه او ښکاره پټه نه ده، نو ځکه د هغه د وېرې او د پرهېزګاری خبرې وکړئ !.

اِنَّمَا النَّجْوٰى مِنَ الشَّيْطٰنِ لِيَحْزُنَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَيْسَ بِضَآرِّهِمْ شَيْـًٔا اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٠﴾

بېشکه چې پټې خبرې (په ګناه) (له کارونو) د شیطان دي، لپاره د دې چې خفه کړي هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او نه دی (شیطان یا پټه خبره) ضرر رسوونکی دغو (مؤمنانو) ته د هیڅ شي مګر په اذن حکم اراده د الله، او ښایي چې خاص پر الله پس توکل دې وکړي مؤمنان.

**تفسیر:** یعنې د منافقانو دا سرګوشی او پس پسی د دې لامله وي چې لږ څه مسلمانان خپه او په سودا کې ولویږي، وویرېږي او پخپلو زړونو کې ووایي چې آیا دا خلق څه غوټه کوي؟ او څه سره وایي؟ او په څه تړون کې سره بوخت دي؟ دا کار شیطان په هغوی باندې کاوه، مسلمانان دې په یاد ولري چې د شیطان له لاسه هیڅ شی کېدونکي نه دي، او هیڅ یو څیز د هغه په واک کې نشته، ګټه او نقصان د الله تعالی په اختیار کې دي، که د هغه حُکم او اراده نه وي، که هر څومره مشورې او منصوبې او تړون وکړي؛ تاته هیڅ نقصان نه شي رسولی، نو ځکه په ځای د دې چې تاسې خفه او پرېشان شئ؛ ښایي چې الله تعالی ته هیله او امید او اسره وکړئ !.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا قِيْلَ لَكُمْ تَفَسَّحُوْا فِى الْمَجٰلِسِ فَافْسَحُوْا يَفْسَحِ اللّٰهُ لَكُمْ ۚ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعنې ای مؤمنانو) ! کله چې وویل شي تاسې ته: ځای ارت کړئ په مجلسونو کې؛ نو ځای ارت کړئ چې پراخي وکړي الله تاسې لره (په جنّت کې).

**تفسیر:** یعنې ای مؤمنانو ! په مجالسو کې داسې سره کېنئ چې د کښېناستلو ځای نورو ته پاتې شي، او ټول موقع ومومي، او د نورو ځای تنګ نه شي، کله چې تاسو ځایونه ارت کړئ خلقو ته؛ نو پاک الله به هم تاسې له تنګی څخه وباسي، او د خپل رحمت ابواب او ورونه به در پرانیځي.

وَاِذَا قِيْلَ انْشُزُوْا فَانْشُزُوْا

او کله چې وویل شي (تاسې ته) چې: پورته شئ ! (کوم ښه کار ته لکه لمونځ او نور)؛ نو پورته شئ !.

**تفسیر:** شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «دا د مجلس ادب دی، که کوم سړی راشي او د هغه د کېناستلو ځای نه وي؛ نو نورو ته ښایي چې لږ لږ سره وخوځیږي، تر څو د مجلس حلقه لویه او ځای ارت شي، یا له خپلو ځایونو څخه ودرېږي او لږ څه ارته بله حلقه او پېنډه سره جوړه کړي، که بالکل د تللو په نسبت دوی ته وویل شي؛ نو لاړ دې شي، په داسې حرکت کې غرور او بخل کول ونه کړئ، ځکه چې په ښو خویونو په سړي باندې الله تعالی مهربان او له بدو خویونو څخه الله تعالی بېزار دی.

يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ

پورته کوي الله هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی له تاسې څخه، او (خاص پورته کوي) هغه کسان چې ورکړې شوی دی دوی ته علم پوهه په درجو مرتبو کې.

**تفسير:** يعنې صادق ايمان او صحيح علم سړي ته ادب او تهذيب ورښيي، او متواضع کوي يې، علم او د ايمان خاوندان چې هومره کمالاتو ته ورسيږي، او لوړو (اوچتو) مرتبو ته وخيژي، او پرمختګ وکړي؛ هومره ځان ښکته، مات، متواضع او ناڅيزه ګڼي، نو ځکه الله تعالى د هسې سړيو درجې لا پسې وچتوي، او دوی لا د پت او د عزّت خاوندان کوي (من تواضع رفعهُ الله)، دا د متکبّرانو، بې دينانو جاهلانو، ناپوهانو کار دی، چې په لږ خبره باندې جګړې نښلوي.

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿۱۱﴾

او الله په هغو (کارونو) چې کوئ تاسو ښه خبردار دی (نو جزاء به پرې درکړي).

**تفسير:** يعنې هر يوه ته د هغه له کار، لياقت او درجې سره سمه مرتبه ښيي، او هغه الله أكرم شأنُه وأعظم برهانُه ته ښه معلوم دی چې کوم يو په رښتيا سره ايماندار او د علم خاوند دی.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نَاجَيْتُمُ الرَّسُولَ فَقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَاكُمْ صَدَقَةً ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَأَطْهَرُ ۚ فَإِن لَّمْ تَجِدُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲﴾

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی (يعنې ای مؤمنانو !) کله چې (اراده کوئ) د پټو خبرو له رسول سره؛ نو وړاندې کړئ په مخکښې د راز خپل څه صدقه، خيرات، دغه تقديم د صدقې پخوا له پټو خبرو نه خير بهتر ډېر غوره دی تاسې لره او ډېر پاکيزه دی، نو که بيا نه مومئ (تاسې هغه شی چې صدقه يې کړئ)؛ پس بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** منافقانو به بې فائدې خبرې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په غوږ کې ويلې، او په دې چل به يې خپله لويي او نژدېوالی نورو ته ورښود، او ځينو مسلمانانو به هم غير مهمې خبرې د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم په غوږ کې په ورو سره ويلې، او د هغوی وخت به يې خرابولو، او نورو ته به يې موقع نه ورکوله چې د پيغمبر صلى الله عليه وسلم له ارشاداتو مستفيد شي، يا که کوم وخت رسول الله مبارک غوښتل چې کوښې کيني، او لږ څه خلوت شي؛ نو هلته به هم خلق ورننوتل، او هغه ځای به يې هم تنګوو، او دوی به يې پخپل فکر نه پرېښودل، او د هغوی په چار چاپېر کې به ډېر سړي غونډېدل، خو رسول الله صلى الله عليه وسلم د مروت او اخلاقو له سببه هيڅا ته هيڅ نه ويل، نو ځکه داسې حکم رانازل شو: «هر څوک چې غواړي له رسول الله صلى الله عليه وسلم سره پټې خبرې او څه مصلحت وکړي؛ ښايي چې پخوا له هغه فقيرانو او مسکينانو ته څه خيرات ورکړي !»، د دې حکم په منلو کې څو ګټې دي، د غريبانو او فقيرانو سره امداد او معاونت کيږي، او د خيرات ورکوونکي د نفس تطهير او تزکيه په عمل راځي، او د منافق او مخلص مسلمان معرفي او پېژندګلوي په ښه شان سره کيږي، او د پټو خبرو د کوونکيو لږ توب په عمل راځي، که له چا سره به د خيرات ورکولو څه شی نه وو؛ نو هغه له دې قيد معاف وو، کله چې دا حکم نازل شو، نو منافقانو د بخل او کنسکۍ لامله هغه عادت پرېښود، او مسلمانان هم وپوهېدل چې ډېرې پټې خبرې کول د الله تعالى نه خوښيږي، او د دې لپاره يې داسې حکم را نازل کړی دی، په پای (آخر) کې يې دا حکم په راتلونکې آيت سره منسوخ وفرمايه:

ءَأَشْفَقْتُمْ أَن تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيْ نَجْوَىٰكُمْ صَدَقَٰتٍ ۚ فَإِذْ لَمْ تَفْعَلُوا وَتَابَ ٱللَّهُ عَلَيْكُمْ فَأَقِيمُوا ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا ٱلزَّكَوٰةَ وَأَطِيعُوا ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ ۚ وَٱللَّهُ خَبِيرٌۢ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٣﴾

آيا ویر ېرئ تاسې (له فقر) چې وړاندې کړئ په مخکښې د پټې خبرې ستاسې صدقات خيراتونه، پس په هغه وخت کې چې ونه کړ تاسې دغه (خيرات) او رجوع په رحمت سره وکړه الله پر تاسې باندې؛ نو قائم کړئ سم ودروئ (سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او ورکړئ تاسې زکات، او حکم ومنئ تاسې د الله او (حکم ومنئ تاسې) د رسول د دغه (الله)، او الله ښه خبردار دی په هغو اعمالو باندې (هم) چې کوئ تاسې (نو جزاء به يې درکړي).

**تفسير:** يعنې د صدقې د ورکولو له حکم څخه کوم مقصد چې وو؛ هغه حاصل شو، اوس مو دا مؤقت حکم له تاسې څخه پورته کړ، ښايي چې تاسې د هغه حکم په تعميل کې په صدق او د زړه له کومې څخه زيار (کوښښ) وکړئ چې هيڅ منسوخ کېدونکی نه دی، او هغه لمونځ روژه او نور حسنات دي، چې له دوی څخه د تاسې د نفس پوره تطهير او تزکيه کيږي.

أَلَمْ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ تَوَلَّوْا قَوْمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم

آيا نه ګورې ته (ای محمده !) هغو (منافقانو) ته چې دوستي کوي له (هغه) قومه (د يهودانو) سره چې غضب کړی دی الله پر هغوی باندې.

**تفسير:** دا خلق منافقان او هغه قوم او ټبر يهودان دي (چې دغه منافقين له هغو يهودانو سره دوستي او همدردي کوي).

مَّا هُم مِّنكُمْ وَلَا مِنْهُمْ

نه دي دغه (منافقان) له تاسې (مؤمنانو) څخه او نه له هغو (يهودانو) څخه.

**تفسير:** يعنې منافق نه په پوره ډول په تاسې مسلمانانو کې شامل دی ځکه چې په پټه کافر دی، او نه په پوره ډول په هغو يهودانو کې ګډ او شامل دي ځکه چې په ښکاره سره ځان مسلمان بولي: ﴿مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذَٰلِكَ لَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هَٰٓؤُلَآءِ﴾.

وَيَحْلِفُونَ عَلَى ٱلْكَذِبِ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿١٤﴾

او قسمونه خوري (منافقان په دعوی د اسلام) په دروغو باندې حال دا چې دوی پوهيږي (پخپلو دروغو).

**تفسير:** قسمونه خوري منافقان په دعوی د اسلام او احترام د سيد الأنام صلی الله عليه وسلم، حال دا چې دوی پوهيږي چې دروغ وايي، او دروغ هم له بېخبرۍ او غفلت څخه نه بلکه په قصد سره پر دروغو خبرو باندې قسمونه خوري، مسلمانانو ته وايي: ﴿إِنَّهُمْ لَمِنكُمْ﴾ «هغوی له تاسې څخه دي او تاسې غوندې په رښتيا سره مسلمانان دي»، او حال دا دی چې هغوی له اسلام سره له لرې نه هم څه نسبت نه لري.

أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا ۖ

تيار کړی دی الله دوی ته عذاب ډېر سخت.

تفسیر: چې د هغوی په نسبت د دې پاک قرآن د (النساء) د سورت په (٢١) رکوع (١٤٥) آیت کې داسې ویلي شوي دي: ﴿إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ﴾.

إِنَّهُمْ سَاۤءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٥﴾

بېشکه دوی لره بد دی هغه شی چې وو دوی چې کول به یې (له ګناهونو).

تفسیر: یعنې که څه هم اوس هغوی ته د دوی بد کارونه په نظر ورنشي، خو هغوی د نفاق په کارونو کې هسې سره بوخت دي چې ځان ته ډېر خراب تخم کري، او خپل ځانونه پخپلو لاسو سره په بلا اخته کوي.

اِتَّخَذُوْۤا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿١٦﴾ لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَاۤ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ؕ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١٧﴾

ګرځولي یې دي قسمونه خپل ډال (چې پرې ساتي سر او مال خپل)، پس منع کړل دوی (په دغو قسمونو سره مؤمنان) له لارې د الله څخه، پس دوی لره دی عذاب سپکوونکی. له سره به دفع نه کړي له دوی څخه (په قیامت کې) مالونه د دوی، او نه اولاد د دوی له (عذابه د) الله څخه هیڅ څیز، دغه کسان یاران ملګري د دوزخ دي، دوی به په دې دوزخ کې تل اوسېدونکي وي.

تفسیر: یعنې د دروغو په قسمونو سره خپل ځانونه او مالونه د مسلمانانو له لاسو څخه ساتي، او خپل ځان مسلمان ورښکاروي، او د دوستۍ او خپلوۍ په ډول نور سړي هم د اسلام له لارې څخه باسي، نو په یاد یې ولرئ چې داسې خلقو ته په دې ډول سره هیڅ یو پت او عزّت نه پاتې کیږي، او د ذلّت او سپکتیا په سختو ربړو او عذابونو ککړ کیږي، کله چې د سزا وخت راورسیږي؛ نو دوی د الله تعالی له لاسه خپل ځانونه نشي ژغورلی، او دوی ته د دوی هغه مالونه او اولادونه څه مرسته او مدد رسولی نشي، چې دوی د هغو د حفاظت لپاره په دروغو سره قسمونه پرې خوړل.

يَوْمَ يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ جَمِيْعًا فَيَحْلِفُوْنَ لَهٗ كَمَا يَحْلِفُوْنَ لَكُمْ وَيَحْسَبُوْنَ اَنَّهُمْ عَلٰى شَيْءٍ ؕ

(یاد کړه ای محمده !) هغه ورځ چې ژوندي پورته کړي (دوی) الله ټول؛ نو قسمونه به خوري دوی هغه (الله) ته لکه چې قسمونه خوري دوی تاسې ته (په دنیا کې ای مسلمانانو)، او ګمان به کوي (دوی) چې بېشکه دوی په یو کار دي (نفعمن او پر کومه ښه لاره درومي).

تفسیر: یعنې د دې ځای هغه روږد شوي عادت به هلته هم له دوی سره وي، لکه چې دلته ستاسې په مخ کې په دروغو سره ځانونه ساتي، او داسې ګڼي چې مونږ ډېر هوښیار یو، او ډېر ښه چالونه چلوو، د الله تعالی په مخ کې به هم د دروغو قسمونو په یادولو سره ځان تیاروي، او وایي: ای پروردګاره ! مونږ خو داسې نه وو، او داسې وو، ښایي دوی داسې ګڼي چې هلته به هم په داسې اقوالو او افعالو او ویناوو سره نجات مومو !.

اَلَاۤ اِنَّهُمْ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ ﴿١٨﴾

واورئ ! خبردار شئ ! چې بېشکه دوی هم دوی دي دروغجنان (چې له الله سره هم دروغ وایي).

تفسیر: بېشکه چې اصل او ډېل دروغ هغه دي چې د الله تعالی په مخکښې یې هم وایي، او د خپلو هغو دروغ ویلو څخه هیڅ نه شرمیږي.

اِسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطٰنُ فَاَنْسٰهُمْ ذِكْرَ اللّٰهِ ؕ

غالب شوی دی پر دوی باندې شیطان، نو هېر کړی دی شیطان له دوی نه ذکر ـ یاد د الله.

تفسیر: پر هر چا باندې چې شیطان داسې پوره لاس ولري؛ نو د هغه زړه او دماغ داسې مسخ او بدلیږي چې هیڅ یو شی یې په یاد نه پاتې کیږي، او په دې باندې هیڅ نه پوهیږي چې آیا پاک الله هم شته؟ که نه؟ دا کمبخت د الله تعالی له عظمت، لویي، جلال او کبریاء څخه ځان نه خبروي، او داسې خیال کوي چې په قیامت کې به هم د دروغو په مرسته خپل ځان وژغوري.

اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ ؕ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۹﴾

(دغه هیروونکي کسان) لښکر د شیطان دی، واورئ ! خبردار شئ ! بېشکه لښکر تابعان د شیطان همدوی دي زیانکاران.

تفسیر: د شیطاني لښکرو انجام ضرور خراب دی، نه په دنیا کې د دوی مکر، فریب، منصوبې د وروستني بري مخ لیدلی شي، او نه په آخرت کې له سخت عذاب څخه خپل ځانونه ژغورلی شي.

اِنَّ الَّذِيْنَ يُحَآدُّوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗۤ اُولٰٓئِكَ فِى الْاَذَلِّيْنَ ﴿۲۰﴾ كَتَبَ اللّٰهُ لَاَغْلِبَنَّ اَنَا وَرُسُلِىْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ قَوِىٌّ عَزِيْزٌ ﴿۲۱﴾

بېشکه هغه کسان چې مخالفت کوي له الله او له رسول د دغه (الله) څخه؛ دغه (د مخالفانو ټولي) په (جملې د) ذلیلانو مغلوبانو کې دي. لیکلي دي الله (په لوح محفوظ کې) چې خامخا به غلبه برى وکړم هرومرو زه او رسولان ځما، بېشکه الله ډېر قوي دی ښه غالب دی.

تفسیر: یعنې له الله تعالی او د ده له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مقابله کوونکی چې د حق او صداقت په خلاف جنګیږي؛ سخت ناکام، سپک او ذلیل دي، پاک الله په لوح محفوظ کې لیکلي دي چې: په پای کې یواځې حق او حقّانیت لره برى او غلبه ده، او د ده پیغمبران هرومرو (خامخا) مظفّر او منصور کیږي، دغه تقریر پخوا له دې په څو ځایونو کې هم تېر شوی دی.

لَا تَجِدُ قَوْمًا يُّؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ يُوَآدُّوْنَ مَنْ حَآدَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَلَوْ كَانُوْۤا اٰبَآءَهُمْ اَوْ اَبْنَآءَهُمْ اَوْ اِخْوَانَهُمْ اَوْ عَشِيْرَتَهُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ كَتَبَ فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْاِيْمَانَ

او نه به مومې ته (ای محمده !، او نه ښاییږي چې بیامومې) یو قوم چې ایمان یې راوړی وي په الله، او په ورځې آخرې (د قیامت) چې دوستي به کوي دوی له هغه چا سره چې مخالفت کوي له الله او له رسول د دغه (الله) نه، اګر که وي (دغه مخالفین) پلرونه د دوی، او ځامن د دوی، یا وروڼه د دوی، یا (نور قبیله) خپلوان د دوی، دغه (قوم چې له دښمنانو د الله سره دوستي نه کوي) لیکلی دی (الله) په زړونو د دوی کې ایمان.

تفسیر: یعنې ایمان د هغوی په زړونو کې داسې ټینګ ثبت شو، لکه هغه لیکه چې پر ډېره باندې لیکلې شوې وي.

وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ

او قوي كړي يې دي دوی په مدد له نزده خپل څخه، (او قوي كړي قوت وركړی دی الله تعالی دوی لره په روح رحمت نصرت خپل سره، يا په نور رڼا د زړه يا په قرآن عظيم الشأن سره).

تفسير: يعنې غيبي رڼا يې ورته عطاء وفرمايله، چې له هغې څخه زړه ته يو راز ځانـته معنوي ژوندون وررسيږي، يا د (روح القدس جبريل) په وسيله سره يې مرسته وفرمايله.

وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ خَٰلِدِينَ فِيهَا ۚ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا۟ عَنْهُ ۚ

او داخل به كړي دوی (الله) په جنّتونو كې چې بهيږي له لاندې د (ونو او ماڼيو) د هغو (څلور قسمه) ويالې، تل به وي دوی په هغو (جنتونو) كې، راضي شو الله له دوی څخه، او راضي شول دوی له الله څخه. (او خوشال شو الله تعالی له دوی نه په سبب د طاعت سره په دنيا كې، او خوشاله شول دوی له الله تعالی څخه په موندلو د لقاء او رضاء او عطاء د جنّت په آخرت كې).

تفسير: يعنې دا خلق د پاك الله لپاره له ګردو اعداء الله څخه خپه او ناراض شوي دي، نو الله تعالی له هغوی څخه خوښ دی، له هر چا څخه چې الله تعالی خوښ وي؛ نو دی نور څه غواړي.

ای رب العالميـنـه ! وګرځوه موږ له دغو څخه !.

أُو۟لَٰٓئِكَ حِزْبُ ٱللَّهِ ۚ أَلَآ إِنَّ حِزْبَ ٱللَّهِ هُمُ ٱلْمُفْلِحُونَ ﴿٢٢﴾

دغه (خلق) دی حزب ـ لښكر د الله، واورئ ! خبردار شئ ! چې بېشكه لښكر د الله چې دی هم دوی دي په مراد رسېدونكي برياليان (كامياب).

تفسير: شاه صاحب (رحمه الله) ليكي: «يعنې هغه څوك چې د الله تعالی له مخالفينو سره دوستي نه لري، اګر كه يې پلار وي يا نور خپلوان هم وي؛ هغه هم رښتوني مسلمانان دي، او هغو ته هم دا درجه وررسيږي»، د كرامو أصحابو هسې شان وو چې د الله تعالی او د ده د رسول الله صلى الله عليه وسلم په معاملو كې به يې د هيڅ څيز او هيچا پروا نه كوله، په همدې سلسلې كې د أحد په غزا كې ابو عُبيده رضي الله تعالی عنه خپل پلار وواژه، د بدر په غزا كې ابو بكر الصدّيق رضي الله تعالى عنه د خپل ځوی د مقابلې لپاره ځان تيار كړ، مصعب بن عُمير رضي الله تعالى عنه عُبيد بن عُمير وو وواژه، عمر بن الخطّاب رضي الله تعالى عنه د خپل ماما عاص بن هشام، علي بن أبي طالب، حمزه، عبيده بن الحارث رضي الله تعالى عنهم د خپلو خپلوانو مخې ته چې عُتبه، شيبه، او وليد بن عُتبه وو؛ ووتل او هغوی يې ووژل، او رئيس المنافقين عبد الله بن أبيّ يعنې د عبد الله ځوی چې هغه هم عبد الله نومېده، او د أبيّ لمسی وو؛ د رسول أكرم صلى الله عليه وسلم په مخ كې د مريسيع په غزا كې عرض وكړ، چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ! كه ستاسې امر وي؛ نو زه د خپل پلار سر اوس پرې كوم، او ستاسې په حضور كې يې لكه يو پنډوس غورځوم، خو د رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره خوښه نه شوه، فرضي الله عنهم ورضوا عنه.

تمّت سورة المجادلة، فلله الحمدُ والمنّة.

# سُورَةُ الحَشْرِ

«د (الحشر) سورت مدني دی، (۲۴) آیته او درې رکوع لري، په تلاوت کې (۵۹) او په نزول کې (۱۰۱) سورت دی، وروسته د (البینة) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ①

نسبت د پاکي کوي الله ته هر هغه چې په اسمانونو کې او هر هغه چې په ځمکه کې دی (سره له اسمانونو او ځمکې)، او همدغه (الله) ښه غالب دی ښه حکمت والا دی.

تفسیر: لکه چې د هغه د زبردستۍ غلبې او د حکمت له آثارو څخه یوه پېښه او واقعه وروسته له دې نه بیانیږي.

هُوَ الَّذِي أَخْرَجَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ دِيَارِهِمْ لِأَوَّلِ الْحَشْرِ ۚ

دغه (الله) هغه ذات دی چې ایستلي یې دي هغه کسان چې کافران شوي وو له اهل د کتابونو څخه له کورونو خپلو څخه په اول د ایستلو د دوی.

تفسیر: له مدینې منورې څخه د مشرق په لوري د څو کروهو په فاصله (واټن) کې د یهودانو د قوم او ټبر یو کلی وو چې «بني نضیر» باله کېده، دا ټبر د ډېرو سړیو او شتو ـ مالونو خاوند وو، او پخپلو کلکو او مضبوطو کلاوو باندې یې زيات اطمینان او ډېره ډاډینه لرله.

ځمونږ پیغمبر محمد صلی الله علیه وسلم کله چې هجرت وفرمایه، او په مدینې منورې کې یې هستوګنه غوره کړه؛ نو ړومبی دوی له مسلمانانو سره د روغې تړون وکړ، او داسې یې غوټه کړه چې مونږ به ستاسې په مقابله کې د نورو مرستې نه کوو، یعنې د عدم تعرّض معاهده یې وتړله، بیا دوی د خیانت له مخې د مکې معظّمې له کافرانو سره په پټه مکاتبې، لیکنې، خبرې اترې کولې، تـر څو چې د دوی یو لـوی مشر «کعب بن الأشرف» له څلوېښتو سورو سره مکې معظمې ته ځان ورساوه، او له بیت الله سره مخامخ د مسلمانانو په مخالفت له قریشو سره یې معاهده او تړون وکړ، څه موده وروسته د الله او رسول صلی الله علیه وسلم له امر سره سم دغه (کعب) د خپلې دغې درغلۍ او خیانت لامله د «محمد بن مسلمه» رضي الله تعالی عنه له لاسه وواژه شو، بیا هم د بني نضیر له لوري د غدارۍ او بد عهدۍ سلسله جاري وه، د مکر، فرېب او دغابازۍ له مخې دوی رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره له څو تنو اصحابانو وبلل چې پخپلو کورونو کې یې په مکر، فرېب او درغلۍ سره ناڅاپه په شهادت ورسوي، یو ځلې یې د یوې لوړې په څنګ کې پر رسول الله صلی الله علیه وسلم له پاسه یو د ژرندې پل ور وغړاوه، چې که ځمونږ په پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې لګېدلی وی؛ نو په شهادت به رسېدلی وو، مګر په دې ګردو مواقعو کې د الله تعالی په فضل او مرحمت سره اسلام او مسلمانانو د دوی له شرورو څخه نجات وموند، بالآخر رسول أکرم صلی الله علیه وسلّم له مسلمانانو سره یوه جرګه وکړه، او په هغې کې یې دا سره غوټه کړه چې له بني نضیر سره دې غزا وشي، کله چې مسلمانانو په ډېر سرعت ګرندیتوب او تلوار سره په هغوی باندې حمله یرغل ور ووړ، او د دوی ګردې کلاوې او کلي یې کلابند او محاصره کړل؛ نو دوی سخت مرعوب شول، او وویرېدل.

او د وېرې او ډار لامله له خپلو كلاوو څخه د باندې په ډېر جګړې ته راونه وتل، او عمومي جنګ ته وار ونه رسېد، او بيا يې د روغې غوښتنه وكړه، تر دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په دوى باندې داسې مرحمت او مهرباني وفرمايله، چې دوى دې له مدينې منورې څخه د باندې ووځي، د دوى سرونه او وينې به ساتلې وي، دوى دې د خپلو منقوله وو اموالو څخه هومره شيان چې وړى يې شي؛ يودې سي، خو د دوى غير منقوله مالونه به د مسلمانانو په لاسونو كې وي، د الله تعالى په حكم هغه كلاوې او ځمكې او نور د مسلمانانو په لاس او قبضه كې ولوېدل، خو د غنائمو په ډول ونه ويشلى شوې، بلكه يواځې ځمونږ د پيغمبر صلى الله عليه وسلم په واك كې پاتې شوې، محمد رسولُ الله صلى الله عليه وسلم د دې ځمكې زياتره برخه پر مهاجرينو باندې وويشله، او د هغو مصارفو بار او پېټى يې د انصارو له اوږو څخه سپك كړ چې انصارو به پر مهاجرينو كول، او په دې ډول سره دواړو ته له هغه ځنې ګټې ورسېدې، او هم رسول أكرم صلى الله عليه وسلم د خپلې كورنى خرڅ او د نبوّت د مقام كلني مصارف له همدې جايداده اخيسته، كه له داسې مصارفو څخه څه شى بهرته پاتې كېده؛ هغه به يې د الله تعالى په لاره كې صرفول.

په دې سورت كې د همدې قصې په لوري اشاره شوې ده، چې الله تعالى همغه غالب قوي حكمت والا ذات دى، چې لپاره د ذليل كولو يې وويستل هغه كسان چې كافران شوي وو له اهل كتاب څخه چې يهودان د بني نضير وو له كورونو خپلو نه، چې په ځمكه د مدينې منورې كې وو، په اول د جمع كېدلو د لښكرو سره، يعنې يواځې په همغه يو يرغل سره وډار شول، او په همغې ړومبنۍ جګړې كې يې خپل كور او كلي او كلكې كلاوې ويجاړې پرېښودلې، او له مدينې څخه وتښتېدل، او هيڅ يوه مېړانه او ثابت قدمي يې له ځانه ورښكاره نه كړه.

مَا ظَنَنتُمْ أَن يَخْرُجُوا ۖ وَظَنُّوا أَنَّهُم مَّانِعَتُهُمْ حُصُونُهُم مِّنَ اللَّهِ فَأَتَاهُمُ اللَّهُ مِنْ حَيْثُ لَمْ يَحْتَسِبُوا ۖ وَقَذَفَ فِي قُلُوبِهِمُ الرُّعْبَ

ګمان نه كاوه تاسې (اى مؤمنانو) چې وبه وځي دوى (له مدينې نه)، او ګمان كاوه دوى چې بېشكه دوى لره منع كوونكې ساتونكې دي كلاوې د دوى له (عذابه د) الله، پس راغى پر دوى (عذاب د) الله له هغه ځايه چې ګمان نه كاوه دوى، او واچوله (الله) په زړونو د دوى كې وېره.

**تفسير:** يعنې د هغوى د ساز او سامان، ټينګو كلاوو، او د توريالي توب او مېړانې په نسبت به ستاسې خيال داسې نه وو، چې تاسې دومره ژر به هغوى پړه كړئ، او دوى به خپلې وسلې له لاسو غورځوي، او نه د هغوى داسې خيال وو چې دا وړو كى او بې وسلې او بې سامان د مسلمانانو ټولى دوى هسې مغلوب او منكوب كړي، هغوى د غفلت په دې خوب كې تللي وو چې دا مسلمانان چې د هغوى په سر باندې د پاك الله لاس دى؛ ځمونږ تر ټينګو كلاوو پورې چېرې رسېدى شي، او ښايي چې مونږ به د خپلو ښو وسلو، او كلكو مورچلو او مېړانې په سيوري كې د الله تعالى له عذابه ساتلي يو، مګر خو هغوى وليدل چې هيڅ يو قوّت او طاقت د الله تعالى د حكم مخه نشي نيولى، پر دوى باندې د پاك الله حكم له هغې خوا راورسېد، چې له هغې خوا نه د هغوى خيال او ګمان هم نه وو، يعنې د هغوى په زړونو كې الله تعالى وېره واچوله، او د بې وسلو او بې شتو مسلمانانو ډار يې پر هغوى باندې كېښود، يو خو هغوى د خپل مشر «كعب بن الأشرف» له ناڅاپي وژلو څخه ډېر مرعوب او ترهور وو، اوس نو د مسلمانانو له دې ناڅاپي حملې او يرغل ځنې يې خپل حواس بالكل له لاسه وويستل.

يُخْرِبُونَ بُيُوتَهُم بِأَيْدِيهِمْ وَأَيْدِي الْمُؤْمِنِينَ

چې ورانول به يې كورونه خپل په لاسو خپلو سره، او په لاسو د مؤمنانو سره (چې وران كړي ځاى د پناهى او ارت شي ورته ځاى د جنګ).

**تفسیر:** یعنې د حرص، غیظ، غضب او قهر په جوش کې به یې د خپلو ودانیو څنځیرونه، وروښه، دړې او نور شلول، ماتول، ورانول او نړول به یې، تر څو له هغو شیانو څخه چې دوی یې له خپلو ځانونو سره نشي وړی؛ مسلمانان ګټور نشي، په دې کار کې مسلمانانو هم له هغوی سره ښې مرستې کولې، یعنې له یوه لوري هغوی په نړولو سره مشغول او بوخت وو، او له بل لوري مسلمانانو هم د هغوی هغه ودانی ورانولې، چې دوی هلته مورچل نیولی وو، که په غور سره وکتل شي؛ هغه ورانی او تباهی چې د مسلمانانو له لاسه رسېدلې وه؛ هغه هم د همدې بدبختانو د بد عهدیو او شرارتونو په نتیجه کې وه.

فَاعْتَبِرُوا يَا أُولِي الْأَبْصَارِ ﴿٢﴾

پس عبرت واخلئ تاسي ای خاوندانو د سترګو (عقلونو په احوالو د دوی).

**تفسیر:** یعنې خاوند د بصیرت ته په دې واقعې کې لوی عبرت دی، الله تعالی دا ورښوول چې د ظلم، کفر، شرک، او بد عهدی انجام څرنګه کیږي؟ او یوازې په ظاهري اسبابو باندې ډاډه کېدل او د الله تعالی له قدرت څخه غافل اوسېدل د پوهانو کار نه دی.

وَلَوْلَا أَنْ كَتَبَ اللَّهُ عَلَيْهِمُ الْجَلَاءَ لَعَذَّبَهُمْ فِي الدُّنْيَا ۖ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُ النَّارِ ﴿٣﴾

او که نه وی لیکلی (مقرّر کړی) الله په دوی باندې وتل (فرار کول) له وطنه؛ نو خامخا په عذاب کړي به وو (الله) دوی لره په دنیا کې (په وژلو او بندي کولو سره)، او دوی لره دی په آخرت کې عذاب د اور.

**تفسیر:** یعنې د هغوی په برخه له وطنه جلا کېدل لیکلي وو، که دا یې په قسمت کې نه وی لیکلې؛ نو بله کومه دنیوي سزا به هغوی ته ورکوله کېده، او د «بني قريظه وو» په شان به وژل کېدل، لنډه یې دا چې له سزا څخه به دوی خپل ځانونه نشو بچ کولی، دا د الله تعالی حکمت دی چې د وژلو په ځای د هغوی په جلا وطنی سره اکتفاء وشوه، مګر خو دا تخفیف یوازې د هغوی په دنیوي سزا کې شوی دی، ځکه چې د آخرت ابدي سزا په هیڅ ډول سره له کافرانو څخه نه کمیږي.

ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ شَاقُّوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ ۖ وَمَنْ يُشَاقِّ اللَّهَ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٤﴾

دغه (تعذیب د دوی) په سبب د دې وو چې بېشکه وو دوی چې مخالفت به یې کاوه له الله او له رسول د دغه (الله) سره، او هر هغه چې مخالفت کوي له الله څخه؛ نو بېشکه شدید سخت دی عذاب د الله.

**تفسیر:** یعنې داسې مخالفانو ته همداسې سختې سزاګانې ورکولی کیږي.

مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً عَلَىٰ أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللَّهِ

هغه چې پرې کوئ تاسې له تنو د ونو د (کم اصلو) خرماوو څخه، یا یې پرېږدئ هغه ولاړې په بېخونو خپلو باندې؛ نو دغه (ټول) په اذن حکم د الله سره دي.

**تفسیر:** کله چې دا قوم کلابند شو، نو رسول الله مبارک صلی الله علیه وسلم اجازه وفرمایله چې د هغوی ځینې کم اصلې ونې دې پرې کړی شي !، او هغه باغونه دې ویجاړ شي چې دوی د هغو تر شا پر مسلمانانو ګزارونه کوي،

تر څو چې د هغو د درد لامله په بهر وتلو باندې مجبور شي، او په ډګر کې وجنګيږي، او د ډګر د جګړې په وخت کې له ونو څخه غازيانو ته څه ربړ او تکليف ورپېښ نه شي، د دې امر په سبب ځينې ونې ووهلى شوې، او ځينې يې پاتې شوې، تر څو له بري څخه وروسته د مسلمانانو په ښه ورشي، کافرانو په داسې طعنه ورکولو باندې شروع وکړه، چې دوى خلقو ته پندونه ورکوي چې له فساده ځانونه وژغورئ، مګر دوى پخپله فساد کوي، آيا د ونو پرې کول او سوځول فساد نه دى؟ نو ځکه دا آيت نازل شو، چې دا ګردې چارې د الله تعالى أجلّ وأعلى شأنُه په اذن او حکم سره سمې شوي دي، او د الله تعالى د حکم تعميل ته هيڅ کله هيڅوک فساد نشي ويلى، ځکه چې هغه په ژورو حکمتونو او مصلحتونو باندې مشتمل وي، لکه چې د دې حکم ځينې حکمتونه او مصالح پاس وليکل شول.

وَلِيُخْزِيَ الْفٰسِقِيْنَ ۝۵

او (بل لپاره د دې دي) چې رسوا کړي (الله) فاسقانو نافرمانانو (يهوديانو) لره.

**تفسير:** يعنې چې مسلمانانو ته عزت ورکړي، او کافران خوار او سپک کړي، لکه هغه ونې چې پاتې وې؛ په هغو کې د مسلمانانو ګټې او د کافرانو غيظ او خفګان وو، ځکه چې هغوى به د دې پاتې ونو له کتلو څخه ويل چې: دا ونې به د مسلمانانو شي، او هغوى به له دې ځنې ګټې اخلي، او هغه ونې چې پرې شوي يا سوځولى شوي دي؛ په هغو کې د مسلمانانو برى وو، چې د غلبې د آثارو ظهور، او د کفّارو هسې غيظ او غضب منظور وو، چې مسلمانان څمونږ په شيانو کې څرنګه تصرّفات کوي؟ نو ځکه دواړه امور جائز او په حکمت باندې مشتمل دي.

وَمَاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْهُمْ فَمَاۤ اَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَّلَا رِكَابٍ وَّلٰكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهٗ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝۶

او هغه مال چې راګرځولى دى الله په رسول خپل باندې له مالونو د دوى، پس نه وو ځغلولى تاسې پر دوى هيڅ اس او نه هيڅ اوښ، ليکن الله مسلّطوي برى ورکوي رسولانو خپلو ته پر هغه چا باندې چې اراده وفرمايي، او الله پر هر څيز باندې ښه قادر دى.

**تفسير:** شاه صاحب ليکي: «په غنيمت او فيء کې همدا فرق او توپير شته، هغه مال چې د جګړې او د جنګ په ډګر کې په لاس راځي؛ هغه غنيمت دى، چې د هغه پنځمه برخه د الله تعالى نذر دى، چې د هغه تفصيل د لسمې پارې په شروع کې تېر شوى دى، او نورې څلور برخې يې پر لښکرو باندې ويشلى کيږي، او هغه شيان چې بې له جنګه په لاس راځي؛ هغه د ټولو مسلمانانو په خزانو کې ايښودل کيږي، او د هغوى په عامّو مصالحو او ضروري کارونو کې لګول کيږي.

مَاۤ اَفَآءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ اَهْلِ الْقُرٰى فَلِلّٰهِ وَلِلرَّسُوْلِ

هغه شى چې راګرځولى دى الله پر رسول خپل باندې له (مالونو د) اهل د قريو کليو (بې له جنګه)؛ نو (هغه) دى الله لره، او رسول (د الله) لره.

**تفسير:** په ړومبنيو آيتونو کې يوازې د بني نضيرو د مالونو د لګولو ذکر وو، اوس د «فيء» د مالونو په نسبت عمومي ضابطه راښيي، يعنې په «فيء» باندې د رسول الله صلى الله عليه وسلم، او وروسته له دوى څخه د امام قبضه او تصرّف وي، چې پر دغو خلقو يې وويشي، د الله تعالى ذکر دلته تبرّکا شوى دى، ځکه چې دى د ګردو شيانو مالک دى، هو ! د کعبې شريفې او د مساجدو صرفيات چې د الله تعالى په نامه ياديږي، ممکن دي چې په کې درج وي.

وَلِذِي الْقُرْبٰى

او (دغه اموال دي) خپلوانو د رسول (الله) لره.

تفسير: يعني د رسول الله صلى الله عليه وسلم خپلوانو څرنګه چې د نبي كريم په زمان كې له دې مالونو څخه هغوى ته وركول كېدل، او په هغوى كې د فقر او مسكنت قيد هم نه وو، لكه چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم خپل تره عبّاس رضي الله تعالى عنه ته چې يو بډاي (غني مشر) وو برخه وركړه، اوس هم وروسته له دوى څخه د پيغمبر صلى الله عليه وسلم خپلوانو ته چې اړ او محتاج وي؛ پر نورو اړو او محتاجانو باندې ترجيح وركوله كيږي، او ښايي چې امام هغوى ته پخوا له نورو څخه په مخكې برخه وركړي.

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ كَيْ لَا يَكُوْنَ دُوْلَةً ۢ بَيْنَ الْاَغْنِيَآءِ مِنْكُمْ ؕ

او (دغه اموال دي) يتيمانو لره او مسكينانو لره او مسافرانو لره، (مقرر كړى دى الله دا قسمت) لپاره د دې چې ونه ګرځي (دغه اموال) دولت په منځ د غنيانو كې له تاسې څخه (چې له خپله حقه زيات واخلي او فقراوو ته لږ وركړي).

تفسير: يعني دا مصارف ځكه راښوولي شوي دي، چې مسلمانان تل د پلار مړيو، اړو، بېكسانو او عامو مسلمانانو په پالنه او پوښتنه كې متوجه اوسي !، او تل د اسلامي عمومي ضروورياتو او مصالحو ته خيال ولري، ځكه چې داسې مالونه د بډايانو او دولتمندانو راكړه وركړه او نورو ګټو لپاره نه دي، او نه ښايي چې هغه د هغوى د مخصوص جايداد په منزله وګرځي، او يواځې بډايان پرې مزې وكړي، او خوندونه ترې واخلي، او غريبان او اكربان له لوږې څخه ومري، يا عمومي مصالح خراب او ويجاړ پراته وي.

وَمَآ اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ ۚ وَمَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۞

او هغه څه چې دركړي تاسې ته رسول (د الله)؛ نو وايې خلئ، ويې نيسئ، قبول يې كړئ !، او هغه څه چې منع كوي (رسول الله) تاسې له هغه څخه؛ نو بېرته شئ ترې (مه يې غواړئ !)، او وويرېږئ له (عذاب د) الله په ځان ساتلو له معاصيو، بېشكه الله سخت دى عذاب (د ده).

تفسير: يعني مال او جايداد او نور چې سم د پيغمبر صلى الله عليه وسلم له امر سره تقسيميږي؛ هغه د تقسيم امر دې په ډېرې خوښې سره ومنلى شي !، هغه چې دررسيږي؛ هغه په خوښې سره واخلئ !، او هغه ته چې ورنه كړ شي؛ هغه دې لاس واخلي !، همداسې د ګردو احكامو او نواهيو منل او پابندي په كار ده.

ځكه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نافرماني د الله تعالى نافرماني ده، او وويرېږئ كه چېرې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نافرمانۍ لامله الله تعالى له تاسې څخه ناراضه نشي، او سخت عذاب په تاسې مسلّط ونه فرمايي.

لِلْفُقَرَآءِ الْمُهٰجِرِيْنَ الَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا
وَّيَنْصُرُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الصّٰدِقُوْنَ ۞

(دغه اموال دي) لپاره د فقيرانو هجرت كوونكيو (هغه مهاجران) چې ايستلى شوي دي دوى له كورونو، كليو خپلو څخه، او له اموالو خپلو څخه، په دې حال كې چې طلبوي دوى فضل بښنه مهرباني له الله او رضا (د ده)، او مرسته كوي له الله او له رسول د دغه (الله) سره (په نفسونو او مالونو خپلو سره)، دغه (مهاجران) همدوى دي صادقان رښتيني (په ايمان او جهاد كې).

تفسیر: یعنې هسې خو په دې مال پورې د ګردو مسلمانانو حوائج او ضروریات تعلّق او اړه لري، مګر په خصوصي ډول سره د ځان قربانوونکو او ایثار خوښوونکیو رښتینو مسلمانانو حق مقدم او وړاندې دی، چې هغوی یواځې د الله تعالی په خوښې او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په محبّت او اطاعت له خپلو کورونو او مالونو او شتو څخه لاس وینځلی دی، او بالکل په تش لاس له خپل هېواده راوتلي دي، تر څو د الله تعالی او د هغه د رسول الله په کارونو کې په زړه پورې پخپل سر او آزاد کار وکړی شي، او هغه ته په ښه ډول مرسته ورسوي.

وَالَّذِينَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْإِيمَانَ مِن قَبْلِهِمْ

او هغو (انصارو لره دي دغه اموال) چې ځای یې نیولی دی په (دې) کور (مدینه) کې، او (خالص کړی یې دی خپل) ایمان پخوا له دغو (مهاجرانو) څخه.

تفسیر: له دې کور څخه مدینه طیّبه مراده ده، او دا خلق د مدینې منورې انصار دي، چې د مهاجرینو له راتګه وړاندې یې په مدینې منورې کې هستوګنه لرله، او د ایمان په لارو کې زیات مضبوط او مستقیم شوي وو.

يُحِبُّونَ مَنْ هَاجَرَ إِلَيْهِمْ

خوښوي محبت کوي دوی له هغه چا سره چې هجرت یې کړی دی دوی ته.

تفسیر: یعنې په مینه او محبت سره د مهاجرینو خدمت کوي، تر دې چې پخپلو مالونو او شتو کې یې هغوی ته برابره برخه ورکړې ده، او د هغوی په شریک ګرځولو کې یې خپل ځانونه تیار کړي دي.

وَلَا يَجِدُونَ فِي صُدُورِهِمْ حَاجَةً مِّمَّا أُوتُوا وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ

او نه مومي دوی په زړونو سینو خپلو کې څه تنګي (حسد) له هغه شي څخه چې ورکړی شوي وي (مهاجرانو لره)، او غوره کوي (مهاجران) مقدّموي یې پر خپلو ځانونو او اګر که وي پر دوی باندې تنګي.

تفسیر: یعنې مهاجرینو ته هغه فضل او شرف چې الله تعالی عطا فرمایلی دی، یا د فيء په مالونو او نورو کې هغه برخه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغو ته عطا فرمایي؛ د هغوی له لیدلو څخه د انصارو زړونه نه خفه کیږي، او په هغوی باندې کینه او حسد نه کوي، بلکه پرې خوښیږي، او په هر څیز کې هغوی پخپلو ځانونو باندې وړاندې ګڼي، پخپله دغه انصاریان مصاعب، متاعب، سختیاوې او ربړونه وچتوي، او په لوږه یې تېروي، مګر هغوی ته هرومرو څه نه څه وررسوي، داسې بې مثله او بې ساری ایثار په دنیا کې تر اوسه پورې هیڅ قوم د بل قوم لپاره نه دی کړی.

وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٩﴾

او هر هغه څوک چې وساتلی شي له بخل د نفس د ده نه؛ نو همدغه کسان دي همدوی مراد موندونکي په مراد رسیدلي.

تفسیر: یعنې ډېر بریالي او کامیاب دي، هغه قوم چې د الله تعالی په توفیق او لاس نیوي د هغوی په زړونو باندې طمع، حرص او بخل هیڅ اغېزه نشي اچولی، ځکه چې طمّاع او بخیلان کله خپلو نورو ورونو ته څه ایثار او ګټه رسولی شي؟ او د نورو په خوښې او هوسایی باندې کله خوښیږي؟.

وَالَّذِينَ جَاءُو مِنْ بَعْدِهِمْ

او (اموال) هغو (کسانو لره دي) چې راغلي دي راځي وروسته له دغو (مهاجرو او انصارو) نه.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې له مهاجرینو او انصارو څخه وروسته د وجود په عالم کې راځي، یا وروسته له دوی څخه د اسلام په حلقه کې داخلیږي، یا له وړاندنیو مهاجرینو څخه وروسته یې هجرت کړی مدینې منورې ته راغلي دي، او غوره ړومبنی قول دی.

يَقُولُونَ رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا وَلِإِخْوَانِنَا الَّذِينَ سَبَقُونَا بِالْإِيمَانِ وَلَا تَجْعَلْ فِي قُلُوبِنَا غِلًّا لِلَّذِينَ آمَنُوا رَبَّنَا إِنَّكَ رَءُوفٌ رَحِيمٌ ﴿١٠﴾

وایي دوی چې: ای ربه څمونږ! مغفرت وکړه مونږ ته او هغو (دیني) ورونو څمونږ ته چې ړومبی داخل شوي دي (له مونږ څخه) په ایمان کې، او مه ګرځوه په زړونو څمونږ کې بغض او کینه د هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی، بېشکه ته (یا الله) ښه مهرباني کوونکی خورا رحم کوونکی یې.

تفسیر: یعنې دغه اخلاف او وروستني کسان هغو اسلافو او سابقینو وړاندنیو ته د ښېښنې دعاء کوي، او د خپل هیڅ یو مسلمان ورور په نسبت بغض او کینه په خپل زړه کې نه لري، امام مالک (رحمه الله) له همدې ځایه فرمایي: «هغه سړی چې د صحابه وو په نسبت بغض او کینه ولري، او د هغوی بدګویي وکړي؛ هغه لره د (فيء) په مال کې هیڅ یوه برخه نشته».

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ نَافَقُوا يَقُولُونَ لِإِخْوَانِهِمُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَئِنْ أُخْرِجْتُمْ لَنَخْرُجَنَّ مَعَكُمْ وَلَا نُطِيعُ فِيكُمْ أَحَدًا أَبَدًا وَإِنْ قُوتِلْتُمْ لَنَنْصُرَنَّكُمْ

آیا نه ګورې ته هغو کسانو ته چې منافقان دغابازان شوي دي، وایي هغوی هغو ورونو خپلو (یهودانو) ته چې کافران شوي دي له اهل د کتابونو: قسم دی که خامخا وویستل شئ تاسې (له مدینې څخه)؛ نو خامخا وبه وځو مونږ هرومرو له تاسې سره، او نه به منو (خبره په ضرر د تاسې کې) د هیچا هیڅکله، او که چېرې جنګ شروع کړ شي له تاسې سره؛ نو خامخا مدد به وکړو مونږ هرومرو له تاسې سره.

تفسیر: عبد الله بن أبيّ او نورو منافقانو د بني نضیر یهودانو ته پیغام او پټه خبره ورلیږلي وه، چې تاسې مه ویرېږئ، او خپل ځانونه یواځې مه ګڼئ، که مسلمانان غواړي چې تاسې له مدینې څخه وباسي؛ نو مونږ به له تاسې سره درېږو، که د جنګ او جګړې وار ورسېد؛ نو مونږ به له تاسې سره مرسته کوو، دا څمونږ قطعي او ناګرځېدونکې ټینګه فیصله او پرېکړه ده، او پرته له دې څخه مونږ ستاسې په جنګ او جګړه کې د هیچا خبره نه اورو، او نه د هیچا پروا کوو.

وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ﴿١١﴾

او الله شاهدي ګواهي ورکوي چې بېشکه دوی خامخا دروغجنان دي (په همدغو خبرو کې).

تفسیر: یعنې دغه منافقان یهودانو ته دغه خبرې له زړه څخه نه وایي، یواځې د مسلمانانو په مخالفت خلق ورپورته کوي، او هسې خبرې کوي چې هغه د مسلمانانو په ګټه نه وي، او هغه خبرې چې په ژبه وایي؛ په هغو باندې هیڅ عمل نه کوي.

لَئِنْ أُخْرِجُوا لَا يَخْرُجُونَ مَعَهُمْ ۚ وَلَئِنْ قُوتِلُوا لَا يَنصُرُونَهُمْ

قسم دی که وویستل شي دغه (یهودان) (له کورونو خپلو نه)؛ نه وځي دغه (منافقان له هغو یهودانو) سره (له کورونو خپلو نه)، او که جنګ وکړ شي له هغو (یهودانو) سره؛ نو مرسته مدد نه کوي دغه (منافقان) هغوی سره.

**تفسیر:** کله چې په مدینې منورې کې جګړه ونښته، او د «بني نضیر» یهودان محصور شول، په هغه نازک حال کې هیڅ یو منافق د دوی مرستې او مدد ته ونه رسېد، په پای کې کله چې هغوی وویستل شول، دغه منافقان په دې وخت کې هم په ډېرې خوشالۍ سره پخپلو کورونو کې ناست وو.

وَلَئِن نَّصَرُوهُمْ لَيُوَلُّنَّ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ﴿١٢﴾

او که (اراده د) مدد مرستې وکړي دغه (منافقان) دغو (یهودانو) لره؛ خامخا وبه ګرځوي دغه (منافقان) په تېښته سره شاوې خپلې، بیا به مدد مرسته ونه کړی شي له دوی سره (منافقانو یهودانو سره وروسته له ماتې).

**تفسیر:** یعنې که په فرض محال سره منافق د هغو یهودانو مرستې ته راغلي وی؛ نو نتیجه به څه کېده؟ پرته له دې څخه چې د مسلمانانو له مقابلې څخه بېرته وتښتي بل نتیجه نه لري، او بیا به د دوی مرسته څرنګه کېده؟ نو د دوی د مرستې لپاره به هم څوک نه رسېده.

لَأَنتُمْ أَشَدُّ رَهْبَةً فِي صُدُورِهِم مِّنَ اللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُونَ ﴿١٣﴾

خامخا تاسو (ای مؤمنانو) ډېر سخت یئ له جهته د وېرې په سینو زړونو د دغو (منافقانو) کې له (وېرې د) الله، دغه وېره (د منافقانو له مؤمنانو څخه) په سبب د دې ده بېشکه چې دوی (داسې) قوم دی چې نه پوهیږي (نه پېژني الله).

**تفسیر:** یعنې که د الله تعالی په عظمت باندې دغه منافقان پوهېدی، او د هغوی په زړونو کې د الله تعالی خوف او وېره وی؛ نو کفر او نفاق به یې ولې غوره کاوه؟ هو ! د مسلمانانو د شجاعت او مېړانې څخه ویریږي، ځکه د مسلمانانو په مقابل کې نه شي ودرېدلی، او نه د جنګ په ډګر کې له ځانه څه ثبات او توره او مېړانه ورښوولی شي.

لَا يُقَاتِلُونَكُمْ جَمِيعًا إِلَّا فِي قُرًى مُّحَصَّنَةٍ أَوْ مِن وَرَاءِ جُدُرٍ ۚ

جنګ به ونه کړي دغه (یهودان) له تاسې سره (ای مؤمنانو) ټول په ګډه سره مګر په قریو کلیو ټینګ کړیو شویو کې، یا وروسته له دېوالونو سنګرونو څخه.

**تفسیر:** یعنې څرنګه چې د دې خلقو په زړونو کې د مسلمانانو وېرې او خوف ځای نیولی دی؛ نو ځکه د جنګ په ډګر کې نشي جنګېدلی، هو په کلیو او ټینګو کلاوو کې سنګرونه نیولی او جګړې کولی شي، یا که د دیوالونو ونو او نورو شیانو تر شاوو ځانونه پټ کړي؛ نو جنګېدی شي.

بَأْسُهُم بَيْنَهُمْ شَدِيدٌ ۚ

جنګ د دوی په منځ د دوی کې ډېر سخت دی.

تفسير: يعنې په جګړو کې چې دوى يې پخپلو منځونو کې کوي؛ ډېر تېز او ګړندي او سخت ښکاري، لکه چې پخوا له اسلامه د «اوس» او «خزرج» د جنګونو تجربه څمونږ په مخ کې پرته ده، مګر د مسلمانانو په مقابله کې د هغوى وينه وچه، توره، پخه، ژبه بنده او مېړانه ورکه شي.

تَحۡسَبُهُمۡ جَمِيعٗا وَقُلُوبُهُمۡ شَتَّىٰۚ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمۡ قَوۡمٞ لَّا يَعۡقِلُونَ ﴿١٤﴾

ګمان به کوې ته په دوى چې سره يو دي (حال دا چې) زړونه د دوى سره جلا جلا دي، دا په سبب د دې دي چې بېشکه دوى داسې يو قوم دى چې نه پوهيږي.

تفسير: يعنې د مسلمانانو په مقابله کې د هغو په ظاهري اتفاق او اتحاد مه غولېږئ، د هغوى زړونه هيڅکله سره غونډ نه دي، او بالکل جلا دي، هر يو د خپل غرض او غوښتنې مين، او د هر يوه فکر او خيال بېل دى، نو ځکه د دوى په منځ کې حقيقي اتحاد او يو جهتي هيڅېږې نه پيدا کيږي، که دوى پوهه ولري؛ نو پوهېدل به چې دا نمايشي اتحاد او د ښودنې يووالى هيڅ نه پکاريږي.

كَمَثَلِ ٱلَّذِينَ مِن قَبۡلِهِمۡ قَرِيبٗاۖ ذَاقُواْ وَبَالَ أَمۡرِهِمۡ وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ ﴿١٥﴾

مثال د دوى (په نه ايمان راوړلو کې) لکه مَثَل (قصه) د هغو کسانو دى چې وو پخوا له دوى نه په نژدې زمانه کې، چې وڅکله هغوى وبال سزا د بدو چارو خپلو، او شته هغوى ته عذاب دردناک (په عُقبا کې).

تفسير: يعنې اوس په نژدې زمانې کې د «بني قينقاع» يهودانو د خپلې درغلى، خيانت، او غدارۍ خوند څکلى دى، کله چې هغوى بد عهدي وکړه؛ نو مسلمانانو له هغوى سره يوه مختصره جګړه ونښلوله، او وروسته د يوه وړوکي جنګ څخه يې هغوى د باندې وشړل، او له هغه څنې په مخ کې په قريبه ماضي کې مکيّانو هم د «بدر» په ورځ کې خپله سزا وموندله، همغسې د «بني نضيرو» انجام هم وګورئ !، چې په دنيا کې د مسلمانانو له لوري پخپل انجام او سزا ورسېدل، او دوى ته د آخرت درد رسوونکى عذاب هم هغسې چې دوى ته ټاکلى شوى دى، هم وررسيږي.

كَمَثَلِ ٱلشَّيۡطَٰنِ إِذۡ قَالَ لِلۡإِنسَٰنِ ٱكۡفُرۡ فَلَمَّا كَفَرَ قَالَ إِنِّي بَرِيٓءٞ مِّنكَ إِنِّيٓ أَخَافُ ٱللَّهَ رَبَّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴿١٦﴾ فَكَانَ عَٰقِبَتَهُمَآ أَنَّهُمَا فِي ٱلنَّارِ خَٰلِدَيۡنِ فِيهَاۚ وَذَٰلِكَ جَزَٰٓؤُاْ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿١٧﴾

(مثال د منافقانو په مخالفت د وعدې کې) لکه مثل (قصه) د شيطان داسې دى، کله چې وايي انسان ته چې: کافر شه !، نو کله چې (انسان) کافر شي؛ وايي (شيطان): زه بېزاره جلا يم له تا څخه، بېشکه زه وېرېږم له الله چې رب (پالونکى) د ټولو عالميانو دى. پس دى عاقبت انجام د دواړو (ګمراه کوونکي او ګمراه شوي) داسې چې بېشکه هغوى دواړه به وي په اور (د دوزخ) کې، تل به اوسيږي دوى (دواړه) په هغه (اور د دوزخ) کې، او همدا جزاء د ظالمانو ده.

تفسير: يعنې شيطان په اول کې انسان ته د کفر او معصيت تشويق او تحضيض ورکوي، کله چې سړى د ده د اغواء په لومه او دام کې ونښلي؛ نو وايي چې: زه له تا څخه جلا او د تا له کاره بيخي بېزاره يم، زه خو له الله تعالى وېرېږم، «دا وينا به هم د ريا او مکارۍ له مخې وي»، نتيجه به داسې وي چې دى به هم د دوزخ خس او بوټي دړې کيږي، او د هغه د دوزخ د لوېدلو سبب به هم ګرځي، شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «شيطان به په آخرت کې دا خبره وايي، او د «بدر» په ورځ کې يې هم د يوه کافر په شکل او بڼه نور خلق په جګړه کې اچولي وو، کله چې سترګې يې پر پرښتو

باندې ولګېدې؛ نو ژر وتښتېد، - لکه چې د هغه بیان د (الأنفال) په سورت کې پخوا له دې څخه څمونږ د دغه پښتو تفسیر کې تېر شوی دی- همدا مثال د منافقینو هم دی»، «هغه بني نضیر» ته د خپل حمایت او رفاقت یقین ورکړی وو، او په دې چل سره یې د مخالفت ډګر ته را وویستل، کله چې هغوی په مصیبت سره اخته شول؛ دی جلا (جدا) شو، او لرې ترې کښېناست، ولې آیا هغه په دې ډول د الله تعالی له عذابه خلاصېدی شي؟ هیڅکله نه خلاصیږي، او د دواړو د هستوګنې ځای دوزخ دی.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی ! وویرېږئ له (عذابه د) الله، او ښایي چې ودې ګوري هر نفس هغه شي ته چې ړومبی یې لېږلی دی لپاره د سبا (قیامت).

تفسیر: یعنې ای مؤمنانو ! له الله تعالی څخه وویرېږئ !، او خپلو ځانونو ته د طاعاتو او عباداتو سرمایه ذخیره برابره کړئ، او فکر وکړئ چې سبا به څه څه شیان در د مخه کېدونکي وي؟ او د قیامت لویې ورځې لپاره مو څه ذخیره او ځېرمه کړي دي؟ او څه شی مو د مخه ورلېږلي دي، چې وروسته له مرګه هغه هلته در پکار شي؟.

وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ۝١٨

او وویرېږئ له الله، بېشکه چې الله ښه خبردار دی په هغو عملونو چې کوئ تاسو.

تفسیر: یعنې ستاسې هیڅ یو کار له الله تعالی څخه پټ نه دی، نو ځکه له هغه الله تعالی څخه وویرېږئ !، او د تقوی او پرهېزګاری لارې غوره کړئ !، او له ګناهونو او معاصیو څنې خپل ځانونه وژغورئ !.

وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ نَسُوا اللَّهَ فَأَنْسَاهُمْ أَنْفُسَهُمْ ۚ أُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۝١٩

او مه کېږئ تاسې (ای مؤمنانو !) په شان د هغو کسانو چې هېر کړی دی هغوی الله، بیا هېر کړ الله په دوی حق د نفسونو د دوی، دغه خلق همدوی دي فاسقان نافرمانان.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې د الله تعالی حقوق یې هېر کړي دي، او د هغه له یاده غافل شوي دي، او د ده د اوامرو او نواهیو هیڅ پروا نه کوي؛ نو الله تعالی هېر کړي دي په دوی باندې حق د نفسونو د دوی، چې له راتلونکیو آفتونو څنې د ژغورنې هیڅ یو فکر او اندېښنه د دوی سره نشته، او په معاصیو او نافرمانیو کې ډوب تللي دي.

لَا يَسْتَوِي أَصْحَابُ النَّارِ وَأَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۚ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمُ الْفَائِزُونَ ۝٢٠

نه دي سره برابر (په نزد د الله) یاران ملګري د اور او یاران ملګري د جنّت، یاران ملګري د جنّت همدوی دي مراد موندونکي په مراد رسیدلي (په لقاء د الله او نعماوو د جنّت).

تفسیر: یعنې ښایي چې هر سړی خپل ځان د جنّت د داخلېدو وړ وګرځوي، چې لاره یې پرته د قرآنکریم د هدایاتو او احکامو په مخکې له غاړې اېښودلو بل شی نه دی.

لَوْ أَنْزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُتَصَدِّعًا مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۚ

که نازل کړی وی مونږ (احکام د دغه) قرآن په یوه غره باندې؛ نو خامخا لیدلی به وو تا هغه (غر) ویرېدونکی فرمان منونکی ټوټې ټوټې کېدونکی له وېرې (د عذابه) د الله.

تفسیر: یعنې د افسوس او د حسرت ځای به وي؛ چې قرآن مجید د انسانانو پر زړونو باندې هیڅ یو اثر او اغېزه ونه کړي، حال دا چې د قرآن شریف اثر او اغېزه دومره زبردسته او قوي ده، چې که هغه پر غرونو غونډې یو کلک شي باندې هم رانښکته شوی وی، او په هغه کې د پوهېدلو داسې یوه ماده چې په انسانانو کې وي شته وی؛ نو هغه به د متکلم د عظمت په مقابل کې ویرېده، او چاودېده، او له ډاره به یې ټوټې ټوټې کېده.

وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ﴿۲۱﴾

او دا مثالونه بیانوو اوروو مونږ هغه خلقو ته (لپاره د دې) چې دوی فکر غور وکړي په کې.

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې د کافرانو زړونه ډېر سخت دي، سره له دې چې د الله تعالی کلام اوري، خو بیا هم ایمان نه پرې راوړي، که غر د دې پاک کلام په مفهوم باندې وپوهیږي؛ نو هغه به هم له ډېرې وېرې وشلیږي».

هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۖ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۖ هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ﴿۲۲﴾ هُوَ اللَّهُ الَّذِي
لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ

دغه الله هغه ذات دی چې نشته بل هیڅ معبود بر حق مګر خو همدی (دی یواځې)، عالم دی په غیبو باندې، او (عالم دی) په ښکاره وو باندې، هم هغه (الله) دی خورا مهربان ډېر رحم کوونکی.
دغه الله (هغه ذات دی) چې نشته بل هیڅ معبود بر حق مګر خو همدی دی، (یواځې) بادشاه دی، ښه پاک دی (له ټولو قبائحو څخه)، سالم دی (له ګردو عیوبو) څخه، امان ورکوونکی دی.

تفسیر: یعنې الله تعالی أجلّ وأعلی شأنُه وأعظم برهانُهُ له ګردو نقائصو او کمزرویو څخه پاک منزّه دی، او له ټولو عیوبو او آفاتو څخه سالم دی، هیڅ یوه خرابي او نقصان نه د هغه دربار ته رسېدلی دی، او نه به وررسیږي، د «مؤمن» ترجمه یې په «امان ورکوونکي» سره کړې ده، او د ځینو نورو مفسّرینو په نزد د «مصدّق» په معنی هم راغلی دی، یعنې پخپل قول او فعل سره د خپلو پیغمبرانو د اقوالو او ویناوو تصدیق کوونکی دی، یا د مؤمنانو په ایمان باندې د تصدیق د مهر ثبت کوونکی دی.

الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ۚ سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ﴿۲۳﴾

شاهد حافظ دی (په اعمالو د بندګانو)، ښه زبردست دی د وېرې خاوند دی، لوی څېښتن دی، پاک دی ذات د الله له هغو شیانو چې (مشرکان یې) ورسره شریکوي.

تفسیر: یعنې د الله تعالی په ذات او صفاتو او افعالو کې هیڅوک ورسره مل او شریک نه دي.

هُوَ اللَّهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ

دغه الله (هغه ذات دی) چې پیدا کوونکی دی راویستونکی دی (له عدم نه وجود ته) صورت ورکوونکی دی.

تفسیر: د (خالق) او د (باري) د فرق په نسبت مو د بني اسرائیل په سورت کې د دې آیت د تفاسیرو په ضمن کې څه اشارې کړې دي، څمونږ دغه مبارک تفسیر بیا ولولئ !.

«المصوّر» صورت جوړوونکی، لکه چې په نطفه باندې یې د انسان تصویر جوړ کړی دی.

لَهُ الْأَسْمَآءُ الْحُسْنٰى

همدغه (الله) لره دي نومونه نېک (ډير ښائسة) عمده مخصوص.

**تفسير:** يعنې هغه نومونه چې په اعلی درجه په ښه والي او کمالاتو او صفاتو باندې دلالت کوي.

يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ

په پاکی سره يادوي هغه (الله) لره هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او (هر هغه څه چې په) ځمکه کې دي.

**تفسير:** يعنې د قال يا د حال په ژبه سره چې په هغه باندې مونږ او تاسې نه پوهيږو.

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿۲۴﴾

او همدغه (الله) ښه غالب دی ښه حکمت والا دی.

تمّت سورة الحشر بمنّه وكرمه، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ المُمتَحنَة

«د (الممتحنة) سورت مدني دی، (۱۳) آیتونه او دوه رکوع لري، په تلاوت کې (۶۰) او په نزول کې (۹۱) سورت دی، وروسته د (الأحزاب) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

څمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم په «حُدیبیې» کې له مکیانو سره روغه وفرمایله، چې د هغې ذکر څمونږ د دغه پښتو تفسیر د (الفتح) په سورت کې پخوا له دې نه تېر شوی دی، تر دوو کلونو پورې دا روغه قائمه وه، بیا د کافرانو له لوري هغه ماته شوه، نو دلته رسول الله صلی الله علیه وسلم د حربي له اصولو سره سم په پټه خوله افواج ټولول، او د مکې معظمې د بري فتح لپاره یې ترتیبات نیول، د خبرو اترو او لیکونو په لېږلو باندې یې ممانعت او بندشونه کېښوول، چې تر څو د مکې معظمې کافران د دوی له دې تیارې څخه خبر نشي، او هغوی هم د جګړې لپاره ځانونه تیار نه کړي، او په دې ډول سره په حرم شریف کې د جګړې مخه ونیوه شي، یوه مسلمان چې «حاطب بن أبي بلتعه» رضي الله تعالی عنه نومیده، او د «بدر» له مهاجرینو څخه وو، مکیانو ته یې یو لیک ورولېږه چې: «د محمد صلی الله علیه وسلم لښکر پر تاسې باندې لکه د شپې تیاره یا د لوی سیلاو د اوبو په شان درتلونکی دی» دا خبره رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د وحې په وسیله ورښکاره شوه، دوی علي «رضي الله تعالی عنه» او څو نورو اصحابو ته امر ورکړ چې یوه ښځه د مکې شریفې په لوري روانه ده، تاسې ورپسې ورشئ، تاسې به له هغې سره په فلاني ځای کې مخامخ کېږئ، له هغې سره یو لیک دی؛ هغه ورځنې واخلئ !، او له ځان سره یې راوړئ، دا أصحاب په تلوار روان شول، او هغه ښځه یې په همغه ځای کې ومونده، هغې ښځې ډېر «لیت او لعلّ» او وړاندې او وروسته وکړ، خو سره له هغه هم همغه لیک (خط) یې وروسپاره، چې د هغه له لوستلو څخه دا خبره ښکاره شوه چې د «حاطب بن أبي بلتعه» رضي الله تعالی عنه له لوري د مکې معظمې د کافرانو په نامه لیکلی شوی دی، او هغوی ته یې د مسلمانانو د تعرّض اطلاع ورلېږلې ده، څمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم «حاطب بن أبي بلتعه» رضي الله تعالی عنه راوباله، او ترې یې وپوښتل چې: دا څرنګه یو حرکت دی؟ ده وویل: یا رسول الله ! نه زه کافر یم، او نه مې له اسلامه مخ اړولی دی، رښتیا خبره خو دا ده چې څما کور او کهول په مکه معظمه کې دی، او هلته د هغوی ساتونکي او پالونکي هیڅوک نشته؛ نو مې غوښتل چې پر کافرانو باندې خپل یو احسان واړوم تر څو هغوی د هغه په معاوضه کې څما له اهل او عیال سره څه غرض ونه لري، بلکه له هغوی سره څه ښېګنې هم وکړي، زه پوهېږم چې له دې څخه ماته ډېره ګټه (فائده) رارسیږي، خو اسلام او مسلمانانو ته له هغه څخه هیڅ یو ضرر نه رسیږي، هغه د فتح او نصرت وعدې چې تاسې ته د الله تعالی له لوري شوې دي؛ هغه په یقیني ډول سره پای (آخر) ته رسېدونکې دي، او د هغو مخه هیڅوک نشي نیولی، لکه چې د ده د هغه خط په منځ کې همدا مضمون لیکلی شوی وو: قسم په الله که رسول الله صلی الله علیه وسلم یوازې هم پر تاسې باندې حمله وکړي؛ نو الله تعالی به ورته مدد ورکوي، او هغه وعدې چې له هغه سره شوې دي؛ خامخا پوره کېدونکې دي.

بلا شُبهه د «حاطب بن أبي بلتعه» رضي الله تعالى عنه څخه دا غټه خطايي شوې ده، خو «رحمة للعالمين» وفرمايل: «لا تقولوا له إلا خيرا» «مه وايئ ورته هيڅ شی پرته له خيره» او ويې فرمايل: «چې حاطب د «بدر» د اصحابو څخه دی، او تاسې ته نه دي معلوم چې الله تعالی د «بدر» د اصحابو ګرد ګناهونه ښښلي دي»، د دې سورت زياتره برخه همدې قصې لره نيوونکې ده، لکه چې الله أجل وأعلى شأنُه وأعظم برهانُهُ داسې فرمايي چې:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا۟ بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی ! مه نيسئ تاسې دښمنان ځما او دښمنان خپل دوستان په دغه حال کې چې غورځوئ لېږئ تاسې خبرونه هغوی ته په سبب د دوستی سره (په منځ ستاسې او د دوی کې) حال دا چې په تحقيق کافران شوي دي هغوی په هغه شي چې راغلی دی تاسې ته له حق (دين او قرآن) څخه.

تفسير: يعني د مکّې کافران هم د الله تعالی جل جلاله دښمنان دي او هم ستاسې، نو له هغوی سره دوستي مه کوئ !، او هغوی ته دوستانه پيغامونه لېږل مسلمانانو لره ښه نه دي، او په تحقيق کافران شوي دي هغوی په هغه څه چې راغلی دی تاسې ته له حق دين څخه، نو د دې لامله د الله تعالی دښمنان شول.

يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ

چې وباسي دوی رسول (د الله) او هم تاسې (له خپل وطن مکې څخه ځکه) چې ايمان راوړی دی تاسې په الله چې رب ستاسې دی.

**تفسير:** يعني پيغمبر ته او تاسې ته يې څنګه ربړونه او زحمتونه درورسول، او تاسې يې د خپل هېواد او وطن په پرېښوولو باندې اړ کړئ، يواځې په همدې خبره سره چې تاسې ولې د يوه الله تعالی چې ستاسې او د ګردو (ټولو) مخلوقاتو پروردګار دی؛ عبادت کوئ؟ نو له دې څخه به لويه دښمني او عداوت څه وي؟ د تعجّب ځای دی چې تاسې له داسې سړيو سره دوستي کوئ؟ او د خپلوی لاسونه وروړاندې کوئ؟.

إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِى سَبِيلِى وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِى

که چېرې يئ تاسې چې راوتلي يئ تاسې (له اوطانو خپلو) لپاره د جهاد جنګ په لاره ځما کې، او لپاره د رضا خوښی غوښتلو ځما.

**تفسير:** يعني که ستاسې له کوره وتل ځما د خوښی لپاره او ځما په لاره کې د جهاد لپاره وي، او خاص ځما د رضا لپاره تاسې نور د خپلو ځانونو دښمنان کوئ؛ نو بيا په هغې دښمنۍ کې د دوستی ارتباط د څه لپاره دی؟ آيا د هغو کسانو په ناراضۍ چې تاسې د الله تعالی رضا ګڼلې وه، اوس غواړئ چې هغوی له خپلو ځانونو څنې رضا او خوښ او الله تعالی ناراض کړئ؟ (العياذ بالله).

تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا۠ أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ

چې په پټه (خبرې) لېږئ تاسې هغوی ته په (سبب د) دوستی سره، او زه ښه عالم يم په هغه څه چې پټوئ تاسې، او په هغه څخه چې ښکاروئ تاسې.

تفسير: يعنې که يو سړی وغواړي چې يو کار له ګردو خلقو او نړيوالو څخه په پټه اجرا کړي؛ نو آيا هغه له الله تعالی څخه هم پټولی شي؟ وګورئ چې «حاطب بن أبي بلتعه» رضي الله تعالی عنه څومره زيار وکړ، او کوښښ يې وکړ چې د خپل ليک اطلاع هيچا ته ورنه کړي، خو الله تعالی له هغه څخه خپل رسول خبردار کړ، او دغه پټه خبره پخوا له وخته ورڅرګنده شوه.

وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيلِ ①

او هر څوک چې وکړي دغه (کار) له تاسې څخه؛ نو په تحقيق ورکه کړې يې ده سمه صافه لاره.

تفسير: يعنې که سره له مسلمانی داسې کار وکړي، او داسې يو وګڼي چې دی به د هغه په پټو ساتلو کې بری ومومي؛ نو سخته غلطي او زيات تېرواته کوي.

إِن يَثْقَفُوكُمْ يَكُونُوا لَكُمْ أَعْدَآءً وَيَبْسُطُوٓا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ وَأَلْسِنَتَهُم بِالسُّوٓءِ وَوَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ ②

که چېرې ظفر بری ومومي (کفّار) په تاسې باندې (نو) شي به دوی تاسې لره دښمنان، او اوږده به کړي تاسې ته لاسونه خپل (په وهلو او وژلو د تاسې)، او (اوږدې به کړي) ژبې خپلې په بدۍ (ويلو د تاسې) سره، او خوښوي به دوی (دغه) چې کافران شئ تاسې (لکه چې دوی دي).

تفسير: يعنې له دې کافرانو څخه په موجوده حالت کې څه هيله او اسره مه لرئ!، که څه هم تاسې زياته پېرزوينه او رواداري پر هغوی باندې وکړئ، او د دوستی اظهار وکړئ؛ هغوی هيڅکله د مسلمانانو خير غوښتونکي نشي کېدی، او سره له دې انتهايي رواداريو که د هغوی لاسونه پر تاسې باندې بر شي؛ نو له هيڅ راز خرابۍ او دښمنی څنې خپل ځانونه نه منع کوي، په ژبو او لاسو سره هر ډول ضررونه او ايذاوې تاسې ته دررسوي، او داسې غواړي هم هغسې چې هغوی له صداقته منکران دي؛ تاسې هم منکران کړي، نو آيا داسې شريران او بد باطنان د دې خبرې وړ دي چې هغوی ته هسې پيغامونه ولېږل شي؟.

لَن تَنفَعَكُمْ أَرْحَامُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ ۚ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ يَفْصِلُ بَيْنَكُمْ ۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ③

له سره به نفع در ونه رسوي تاسې ته (که کافران شئ) خپلوي ستاسې، او نه اولاد ستاسې په ورځې د قيامت کې فيصله به وکړي (الله) په منځ ستاسې کې، او الله په هغو عملونو چې کوئ يې تاسې ښه ليدونکی دی.

تفسير: حاطب رضي الله تعالی عنه هغه خط د خپل اهل او عيال لپاره ليکلی وو، نو په دې باندې داسې تنبيه فرمايي چې اولاد او خپلوان د قيامت په ورځ هيڅ نه پکارېږي، الله تعالی د هر يوه سړي اعمال تر ذرې ذرې پورې هم ګوري، او سم له هغه سره فيصله او پرېکړه کوي، د الله تعالی دا فيصله هيڅ يو څوی، لمسی، کړوسی خپل، خپلوان او عزيزان نشي ماتولی، نو بيا دا کومه عقلمندي ده چې يو مسلمان د خپل اهل او عيال لپاره الله تعالی له خپل ځان څخه نارضا کړي، په ياد يې ولرئ چې له هر شي څخه د الله تعالی رضامندي او خوښي وړاندې ده، که دی له مونږ څخه راضي وي؛ نو د هغه په فضل او کرم سره ګرد کارونه ښه کېږي، او که الله تعالی نارضا شي؛ نو هيڅ شی نه پکارېږي.

قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا۟ لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا۟ مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا۟ بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ

په تحقیق شته تاسې لره (ای مؤمنانو !) طریقه ښه (چې اقتداء پسې کولی شئ) په (قول او فعل) د ابراهیم کې او په (قول ـ فعل د) هغه چا کې چې ده سره وو (له مؤمنانو)، کله چې وویل (دغه ابراهیم او اتباعو یې مشرکانو د) قوم د دوی ته چې: بېشکه مونږ جلا بېزاره یو له تاسې څخه، او (بېزاره یو) له هغه څیزه چې عبادت یې کوئ تاسې بې له الله، منکران شوي یو مونږ (په باطل دین) ستاسې باندې، او ښکاره شوی دی په منځ څمونږ او ستاسې کې عداوت، دښمني او بغض حسد ابدي همېشه، تر هغه پورې چې ایمان راوړئ په الله باندې یواځې (چې واحد لا شریک دی).

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې سره له اسلامه د ابراهیم (علیه وعلی نبیّنا أفضل الصلاة والسلام) سره ملګري شوي دي، هر یوه په خپل وخت کې په خپلو فعلونو او قولونو سره له هغو کفارو څني د بېزارۍ او بېلتون اعلان کړی دی، او ابراهیم علیه السلام سره له نورو مؤمنانو اتباعو خپلو هغو مشرکانو د قوم خپل ته وویل چې: په تحقیق سره مونږ بېزاره یو له تاسې څخه، او بېزاره یو له هغه شي څخه چې عبادت یې کوئ تاسې بې له الله چې بُتان دي، او کافر شوي یو مونږ په دین یا په معبود ستاسو باندې، یعنې تاسې ای کفارو څرنګه چې له الله تعالی څخه منکران یئ، او د الله تعالی د احکامو پروا نه کوئ؛ نو مونږ هم ستاسې له طریقې څخه منکران یو، او د یوې ذرې په مېچ هم ستاسې فکر او پروا نه کوو، او ښکاره شوی دی په منځ څمونږ او ستاسې کې عداوت، دښمني او بغض کینه همېشه تل تر هغه پورې چې ایمان راوړئ تاسې په الله تعالی باندې یواځې، یعنې دا دښمني به هلته پای ته رسیږي چې تاسې شرک او کفر پرېږدئ، او د همغه یوه مالک الملك والملکوت أکرم شأنُه وأعظم برهانُهٗ هسې بندګان او چوپړان شئ لکه چې مونږ یې هم بندګان او تابعان یو.

إِلَّا قَوْلَ إِبْرَٰهِيمَ لِأَبِيهِ لَأَسْتَغْفِرَنَّ لَكَ وَمَآ أَمْلِكُ لَكَ مِنَ ٱللَّهِ مِن شَىْءٍ ۖ

مګر خو (اقتداء مه کوئ د) یوې خبرې د ابراهیم (چې ویلي یې وو پخوا له منع کیدلو) پلار خپل ته (داسې) چې خامخا زه بخښنه غواړم هرومرو (خامخا) د تا لپاره، او مالك نه یم زه تا لره له عذابه د الله د هیڅ څیز.

**تفسیر:** یعنې یواځې دعا کولی شم، د کومې ګټې او نقصان مالك نه یم، الله تعالی هر څه چې وکړي کولی یې شي، او د هغه مخه هیڅوك نشي نیولی، شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې ابراهیم علیه السلام هجرت وکړ، او بیا یې خپل ټبر ته مخ ونه ګرځاوه، نو آیا تاسې به هم همغسې کوئ؟ یو خو ابراهیم علیه السلام کله چې دا خبره ورمعلومه نه وه خپل پلار ته یې دعا وکړه، او هر کله چې دا خبر ورمعلومه شوه چې مشرکان له غُفران څخه محروم دي؛ نو چپ شو، اوس چې هغه خبره تاسې ته ښکاره شوه؛ نو څکه د کافرانو بښنه مه غواړئ !».

او ویل ابراهیم علیه السلام او اتباعو یې داسې چې:

رَّبَّنَا عَلَيْكَ تَوَكَّلْنَا وَإِلَيْكَ أَنَبْنَا وَإِلَيْكَ ٱلْمَصِيرُ ﴿٤﴾

ای ربه څمونږ (خاص) په تا باندې توکّل کړی دی مونږ او (خاص تاته) رجوع کړې ده مونږ، او (خاص) تاته بېرته ګرځېدل د ګردو دي (په آخرت کې لپاره د جزاء).

تفسير: يعني ګرد مو پرېښوول، او تاته مو هيله وکړه، او د خپل له قوم او له ټېبر څخه مو پرېکړه وکړه، او له تا سره مو خپل علاقه ونښلوله، او تاته مو رجوع وکړه، او په دې باندې پوهيږو، چې د ګردو ورتګ ستا په لوري دی.

رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِّلَّذِينَ كَفَرُوا وَاغْفِرْ لَنَا رَبَّنَا ۖ إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٥﴾

(وويل ابراهيم او اتباعو د ده) ای ربه څمونږ ! مه ګرځوه ته مونږه فتنه ځای د ازمويلو هغو کسانو لره چې کافران شوي دي، او ښښنه وکړه مونږ لره ای ربه څمونږ، بېشکه هم ته یې ښه غالب قوي ښه حکمت والا.

تفسير: يعني مونږ د کافرانو لپاره فتنه او د ازموېښت محل د مشق تخته مه ګرځوه !، او مونږ پخپل فضل او کرم سره په دغسې حالت کې وساته، چې د هغو له ليدلو څخه کافران خوښ نشي، او پر اسلام او مسلمانانو باندې د تمسخر او استهزاء غږونه وکړي، او څمونږ په مقابل کې په خپل حقانيت باندې استدلال وکړي، بېشکه هم ته یې ښه غالب قوي په انفاذ د احکامو ښه حکمت والا چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي، يعني څمونږ تقصيرات او کوتاهي وبښه، او را معاف یې کړه، ستا د زبردست قوّت او حکمت څخه همدا هيله او توقّع ده، چې خپل وفا لرونکي بندګان د دښمنانو په مقابل کې مقهور او مغلوب مه کړې، اوس لپاره د ازدياد د حرص په اقتداء د ابراهيم عليه السلام کې الله أكرمَ شأنُه وأعظم برهانُه داسې ارشاد فرمايي:

لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيهِمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُو اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ ۚ وَمَن يَتَوَلَّ فَإِنَّ اللَّهَ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ﴿٦﴾

خامخا په تحقيق ده تاسې لره (ای مؤمنانو) په دغو (خبرو د ابراهيم او اتباعو د ده) کې طريقه حسنه ښه (چې اقتداء پسې کوئ، او دا اقتداء ده) هغه چا لره چې وي چې اميد لري د الله، او ويرېږي د ورځې آخرې (د قيامت)، او هر هغه څوک چې مخ وګرځوي د الله تعالی د احکامو څخه؛ نو بېشکه الله همغه دی غني بې پروا، ښه ستايلی شوی (په ښو صفتونو).

تفسير: يعني تاسې مسلمانانو ته يا په بل لفظ هغو خلقو ته چې د الله تعالی د ليدلو او د آخرت د قائمېدلو هيله لرئ، د ابراهيم عليه السلام او د ده د ملګرو حسنه اسوه او نېکې طريقې غوره کول پکار دي، که څه هم ټوله دنيا تاسې ته متعصّب او جاهل ووايي، تاسې خپل مخونه د هغې لارې څخه مه اړوئ !، چې د دنيا هغه لوی موحد هغه پخپل تګ او طرز عمل سره قائم کړي، د مستقبل وخت ابدي کاميابي او بری د همدې لارې په تللو سره په لاس درتلی شي، که چې (مخالف) له دې نه لاړ شئ، او د الله تعالی له دښمنانو سره خپله دوستي ټينګه کړئ؛ نو تاسې پخپله نقصان او زيان مومئ، څکه چې الله تعالی د هيچا د دوستۍ او دښمنۍ پروا نه لري، هغه پخپل ذات سره د ګردو کمالاتو او هر راز ښېګڼو مالک او څښتن دی، او هيڅ ضرر ورته نه رسيږي.

عَسَى اللَّهُ أَن يَجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ الَّذِينَ عَادَيْتُم مِّنْهُم مَّوَدَّةً ۚ وَاللَّهُ قَدِيرٌ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٧﴾

ښايېږي چې الله پيدا کړي په منځ ستاسې کې او په منځ د هغو کافرانو کې چې دښمني لرئ تاسې له هغوی سره دوستي، او الله ښه قادر دی، او الله ښه مغفرت کوونکی دی، ډېر رحم کوونکی دی.

تفسير: يعني د الله تعالی د قدرت او رحمت څخه بعيد نه دي، چې د نن ورځې ډېر کلک کافر سبا ښه پوخ مسلمان وګرځوي، او په دا ډول ستاسې او د هغوی په منځ کې د دوستۍ تعلّقات قائم شي، لکه چې د مکې معظمې په فتحه

کې همداسې وشوه، نژدې مکيان مسلمانان شول، او هغه کسان چې پرون به يې يو د بل په مخ تورې وښکلې؛ نن يو پر بل باندې ځان قربانوي، په دې آيت کې مسلمانانو ته اطمينان او تسلي ورکړې شوې ده، چې د مکيّانو په مقابل کې د مسلمانانو دا د خپلوۍ شلول او ترک موالات او جهاد د څو ورځو له مخې مؤقتي دی، بيا به هغه ته څه اړه او ضرورت نه پاتې کيږي، او له چا ځنې چې په دې لاره څه بې اعتدالي شوي وي؛ الله تعالی د ده د هغې خطا بښونکی دی، ځکه چې همغه لوی بښونکی دی.

لَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ⑧

نه منع کوي تاسې (ای مؤمنانو) الله له (دوستی د) هغو کسانو چې نه يې دی کړې جنګ له تاسو سره په (کار د) دين کې، او نه يې ايستلي يئ له کورونو خپلو څخه (له دې نه) چې نيکي وکړئ تاسې له دوی سره، او چه عدل او انصاف وکړئ تاسې له هغوی سره، بېشکه چې الله مينه کوي له انصاف او عدل کونکو سره.

**تفسير:** يعنې په مکّه معظمه کې داسې خلق هم شته، چې دوی پخپله مسلمانان شوي نه وو، خو له مسلمانانو سره يې څه ضد او مخالفت هم نه کاوه، او به يې د دين په چارو کې له هغو سره جګړې کولې، او نه به يې ربړونه ورپېښول، او نه به يې د هغوی په ايستلو کې د ظالمانو مرستې کولې، له داسې کافرانو سره له ښېګڼې او ښه سلوک کولو څخه اسلام هيڅ ممانعت نه کوي، کله چې هغوی ستاسې سره عدل او انصاف نرمي او رواداري کوي، نو د انصاف تقاضا همدا ده چې تاسې هم له هغوی سره ښه ټينګ او مناسب سلوک وکړئ، او دنيا ته وروښيئ چې د اسلامي اخلاقو معيار څومره هسک دی؟.

اِنَّمَا يَنْهٰىكُمُ اللّٰهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَاَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ وَظٰهَرُوْا عَلٰٓي اِخْرَاجِكُمْ اَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ⑨

بېشکه همدا خبره ده چې منع کوي تاسې الله له (دوستی د) هغو کسانو څخه چې جنګ يې کړی دی له تاسې سره په (کار د) دين کې، او چې ايستلي يې يئ له کورونو د تاسې څخه، او کومک مرستې يې کړې دي له دښمنانو ستاسې سره په ايستلو ستاسې کې، له دې څخه چې دوستي وکړئ تاسې له هغوی سره، او هر هغه چې دوستي کوي له هغوی سره؛ دغه (خلق) همدوی دي ظالمان ګنهګاران.

**تفسير:** يعنې له هسې ظالمانو سره دوستانه تعلّقات قائمول بېشکه سخت ظلم او ګناه ده، (ربط) تر دې ځای پورې د کفّارو د دوو ډولو (معاند ـ مسالم) سره د معاملې ذکر وو، وروسته له دې نه دا راښيي چې له هغو ښځو سره څه معامله وکړو چې له (دار الحرب) څخه (دار الاسلام) ته راشي؟ يا په (دار الحرب) کې هستوګنه ولري؟، خبره دا ده چې د حُديبيې په روغه کې مکې والو داسې ټاکلي وو چې: ځمونږ هغه سړي چې د مسلمانانو په لوري راشي؛ ښايي چې هغه بېرته ولېږلی شي، لکه ځمونږ پيغمبر دا خبره منلې هم وه، او د هغه په اثر څو سړي چې مدينې منورې ته راغلي وو؛ بېرته مکې معظمې ته ولېږل شول، وروسته له هغه څخه څو ښځې هم راغلې، که دا ښځې هم بېرته لېږلې کېدې؛ نو د کافر نارينه په کور کې د مسلمانې ښځې هستوګنه له اسلامي غيرته لرې ښکارېدل، او د هغو ناسته ملاسته سره حرامه وه، نو په دې باندې دا وروستي آيتونه رانازل شو، معلوميږي چې وروسته له دې نه د ښځو په بېرته لېږلو کې کافرانو اصرار ونه کړ، او که نه هغه روغه به روغه نه پاتې کېده.

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِذَا جَآءَكُمُ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٖ فَٱمۡتَحِنُوهُنَّۖ ٱللَّهُ أَعۡلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّۖ﴾

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى، كله چې راشي تاسې ته مؤمنانې (ښځې) هجرت كوونكې وطن پرېښودونكې؛ نو وازمويئ تاسې هغوى، الله ته ښه معلوم دى ايمان د دوى.

تفسير: يعني د زړونو احوال الله ته ښه معلوم دي، خو په ښكاره ډول سره تاسو د هغو ښځو تفتيش او تحقيق په ښه ډول سره وكړئ !، چې آيا په رښتيا سره مسلمانې دي؟ آيا په رښتيا د مسلمانى لامله دوى هجرت كړى دى، او خپل وطن يې پرېښى دلته راغلي دي؟ آيا كومې دنيوي يا نفساني غوښتنې د دوى د هجرت او راتګ سبب شوي دي؟ په ځينو روايتونو كې راغلي دي چې عمر رضي الله تعالى عنه به د دوى امتحان اخيستلو، او ازموينه يې كوله، او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له لوري به يې د هغوى بيعت اخيست، كله كله به پخپله رسول أكرم صلى الله عليه وسلم هم د دوى بيعت مانه، چې وروسته په ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ إِذَا جَآءَكَ ٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ يُبَايِعۡنَكَ﴾ الآية ـ كې مذكور دى.

﴿فَإِنۡ عَلِمۡتُمُوهُنَّ مُؤۡمِنَٰتٖ فَلَا تَرۡجِعُوهُنَّ إِلَى ٱلۡكُفَّارِۖ لَا هُنَّ حِلّٞ لَّهُمۡ وَلَا هُمۡ يَحِلُّونَ لَهُنَّۖ وَءَاتُوهُم مَّآ أَنفَقُواْۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيۡكُمۡ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَآ ءَاتَيۡتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّۚ﴾

نو كه وپېژنئ تاسې دوى (په قسم سره) مؤمنانې؛ نو بېرته مه لېږئ هغوى د كفارو طرف ته، نه دي دغه (مؤمنانې ښځې) حلالې هغو (كفارو سړيو) لره، او نه هغه (كافران) حلال دي (مؤمنو ښځو) لره، او وركړئ تاسې (هغو كافرانو) ته (چې مېړونه د هغو ښځو دي) هغه څه چې لګولي يې دي (له مهره)، او نشته هيڅ ګناه پر تاسې باندې چې نكاح وتړئ تاسې له دې ښځو سره په شرط د دې كله چې وركړئ تاسې هغو ته مهرونه د دوى.

تفسير: داسې حكم وشو: كه له زوجينو څخه يو مسلمان او بل مشرك وي، نو د دارينو په اختلاف سره د نكاح تعلّقات قائم نه پاتې كيږي، كه د كوم كافر ښځه مسلمانه شوې وي، او دار الاسلام ته راشي، هر هغه مسلمان چې د دې نكاح تړي؛ د ده په غاړه ده چې هومره مهر چې هغه كافر په دې ښځې وركړى دى؛ هومره بېرته وركړي، او اوس د دې ښځې مهر هر څه چې ټاكلى شوى وي؛ هغه جلا دې ښځې ته وروسپاري، نو وروسته له دې څخه د هغې ښځې سره نكاح تړلى شي.

﴿وَلَا تُمۡسِكُواْ بِعِصَمِ ٱلۡكَوَافِرِ وَسۡـَٔلُواْ مَآ أَنفَقۡتُمۡ وَلۡيَسۡـَٔلُواْ مَآ أَنفَقُواْۚ ذَٰلِكُمۡ حُكۡمُ ٱللَّهِ يَحۡكُمُ بَيۡنَكُمۡۖ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ ١٠﴾

او منګولې مه نښلوئ په عصمتونو د ښځو كافرانو (او مه يې ساتئ په نكاح خپله كې)، او وغواړئ تاسې هغه څه چې خرڅ كړي دي تاسې (پر دغو كافرانو)، او ودې غواړي (دغه كفار هم) هغه څه چې خرڅ كړي وي هغوى (له مهرونو پر دغو مهاجرانو)، (دا مذكوره احكام) حكم د الله دى، حكم كوي (الله په دغه سره) په منځ ستاسې كې، او الله ښه علم والا دى ښه حكمت والا دى.

تفسير: د ړومبي حكم په مقابل كې وروستنى داسې حكم وشو، د هغه مسلمان سړي ښځه چې لا كافره پاتې وي؛ دغه مسلمان دې هغه ښځه پرېږدي !، بيا هر كافر چې له هغې سره نكاح وتړي، د دې مسلمان لګولى شوى مهر به بېرته وررسوي، په همدې ډول هر يو له دواړو فريقينو څخه دې يو له بل څخه خپل حق وغواړي، كله چې دا حكم راښكته شو؛ نو مسلمانان دې خبرې ته تيار شول، چې هم يې وركړي، او هم به يې واخلي، خو كافرانو وركول ونه منل، نو ځكه دا راتلونكى آيت رانازل شو.

وَإِن فَاتَكُمْ شَيْءٌ مِّنْ أَزْوَاجِكُمْ إِلَى الْكُفَّارِ فَعَاقَبْتُمْ فَآتُوا الَّذِينَ ذَهَبَتْ أَزْوَاجُهُم مِّثْلَ مَا أَنفَقُوا ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي أَنتُم بِهِ مُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾

او که چېرې فوت شي له تاسو نه (ای مؤمنانو) یو شی له ښځو ستاسې په طرف د کُفّارو؛ پس غزا مو وکړه (او غنیمت مو واخیست تاسې په غزا کې)؛ پس ورکړئ تاسې هغو کسانو ته چې تللې وې ښځې د هغوی (کفارو ته) په مثل د هغه (مهر) چې ورکړی دی دوی (هغو ښځو لره)، او وویرېږئ تاسې له الله هغه چې تاسو پر هغو باندې ایمان راوړونکي یئ.

تفسیر: یعنې که د کوم مسلمان ښځه مرتده او دار الحرب ته لاړه شي، او کافر د هغه خرڅ بېرته نه ورکوي، نو که د کوم کافر ښځه د مسلمانانو کره راشي، د هغه هر څومره خرڅ چې کیږي؛ ښایي د هغه کافر په ځای دې مسلمان ته ورکړي چې ښځه یې کافر کره تللې ده، او حق یې سوځېدلی دی، هو ! دومره ده که د دغه مسلمان د حق له ورکولو څخه څه شی بېرته پاتې شي؛ هغه به همغه کافر ته وررسوي !، ځینو عالمانو لیکلي دي: که کوم مسلمان د کافر خرڅ نشي ورته رسولی؛ نو هغه دې د مسلمانانو په بیت المال کې ور تحویل کړي، الله أکبر ! دا څومره د عدل، انصاف تعلیم دی !، خو په دې باندې عمل کوونکی به همغه څوک وي چې د هغه په زړه کې د الله تعالی وېره وي، او په هغه باندې پوره او کامل ایمان ولري.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَىٰ أَن لَّا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ

ای نبي ! کله چې راشي تاته مؤمناني ښځې چې بیعت کوي له تا سره پر دې شرط چې نه به شریکوي دوی له الله سره هیڅ شی، او نه به کوي غلا دوی، او نه به کوي زنا دوی، او نه به وژني دوی اولاد خپل.

تفسیر: یعنې ای محمده ! بیعت واخله له ښځو څخه په دې خبره چې نه به شریکوي دوی له الله تعالی سره هیڅ شیز، او غلا به نه کوي، او زنا به نه کوي، او نه به وژني اولاد خپل لکه چې د جاهلیت په زمانه کې رواج وو، د معمولي ننګ او عار لامله به یې جونې ژوندۍ په هدیرو کې خښولې، او په ځینو وختونو کې به یې د لوږې له وېرې هم خپل اولاد واژه.

وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِينَهُ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ

او نه به راتله کړي په دروغو سره چې جوړوي یې دوی په منځ د لاسو او پښو خپلو کې (یعنې له خپله ځانه).

تفسیر: او بیعت واخله ای ځما پیغمبره ! له ښځو څخه په دې خبره چې: نه به راځي په دروغو سره چې جوړوي هغه دروغ په منځ د لاسونو او پښو خپلو، یعنې چې حرامزاده اولاد رانه وړي او په بل چا باندې په دروغو سره دعوی کوي، یا په دروغو سره شاهدي ورکوي، یا په کومه معامله کې له خپل ځانه خبره جوړه کړي په دروغو سره او قسمونه خوري، بله معنی یې دا ده چې: د خپل ځېږولي اولاد نسبت په دروغو سره بل چاته کوي، یا د بل چا اولاد پټوي، او داسې وایي چې: دا مې له خپل مېړه دی، یعنې په مکر او فرېب، دروغ، درغلی او ناروا سره خپل اولاد بل ته یا د بل اولاد ځان ته کوي.

وَلَا يَعۡصِينَكَ فِي مَعۡرُوفٖ فَبَايِعۡهُنَّ

او نه به کوي نافرماني له تا څخه په معروف ښو چارو کې؛ نو بیعت وکړه له دوی سره.

تفسیر: یخوا یې فرمایلي وو: هغه مسلمانې ښځې دې چې په هجرت کولو سره راځي؛ وپوښتلی شي !، دلته دا راښیي چې د هغوی پوښتل دا دي: که دا ګرد حکمونه چې په دې آیت کې دي هغوی ومني؛ نو د هغوی ایمان ثابت وګڼه !، دې آیت ته د بیعت آیت وایه شي، څمونږ د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په مخ کې به چې ښځو بیعت کاوه، نو همدا اقرار به یې له دوی څخه په ژبه سره اخیست، لیکن د بیعت په وخت کې د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم لاس د هیڅ یوې ښځې لاس ته نه دی رسېدلی.

وَٱسۡتَغۡفِرۡ لَهُنَّ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ غَفُورٞ رَّحِيمٞ ۝١٢

او مغفرت بښنه وغواړه لپاره د دغو (ښځو) له الله، بېشکه چې الله ښه مغفرت کوونکی (د خطیّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

تفسیر: یعنې په دې چارو کې هغه کوتاهي چې یخوا له دې څخه شوې ده، یا د دې احکامو په ځای راوړلو کې وروسته له دې نه کوم تقصیر وربېښ شي؛ نو ځکه تاسې د هغوی په حق کې د مغفرت او بښنې غوښتنه وفرمایئ، تر څو الله تعالی ستاسې په دعا د دوی تقصیرات وروبښي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَوَلَّوۡاْ قَوۡمًا غَضِبَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِمۡ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی ! مه کوئ دوستي له هغه قوم (یهودانو) سره چې په قهر شوی دی الله پر دوی باندې.

تفسیر: هغه خبره چې د دې سورت په شروع کې وه، د دې سورت په ختم کې یې هم د هغه یاد وفرمایه، یعنې د مؤمن په شان کې نه دي چې له هغه چا سره رفاقت او دوستي وکړي چې الله تعالی ورته په قهر وي، په هر چا باندې چې پاک الله په قهر وي؛ ښایي چې د الله تعالی دوستان هم ورته په قهر وي.

قَدۡ يَئِسُواْ مِنَ ٱلۡأٓخِرَةِ كَمَا يَئِسَ ٱلۡكُفَّارُ مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡقُبُورِ ۝١٣

په تحقیق نااميده شوي دي دغه (یهودان) له آخرته لکه چې نااميده شوي دي کافران له ټولګیو ملګرو د هدیرو څخه.

تفسیر: یعنې منکران داسې توقّع نه لري چې له هدیرې څخه به څوک پاڅیږي، او بیا به په بل ژوندون کې یو له بل سره وګوري، دا کافران هم هم هغسې نااميده دي.

تنبیه: د ځینو مفسّرینو په نزد ﴿مِنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡقُبُورِ﴾ د کفّارو بیان دی، یعنې هغسې چې هغه کافران چې هدیرو (مقبرو) ته رسېدلي دي، او د هغه ځای له حال او احوال څخه خبر شوي دي، او د الله د مهربانۍ او خوښۍ څخه بالکل بې هیلي او نااميده شوي دي؛ همدا راز دا کافران هم د آخرت له لوري بالکل بې اسرې او نااميده دي.

تمّت سورة الممتحنة بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.

# سُورَةُ الصَّفِّ

«د (الصف) سورت مدني دى، (۱۴) آيتونه دوه ركوع لري، په تلاوت كې (۶۱) او په نزول كې (۱۰۹) سورت دى، وروسته د (التغابن) له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۚ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ① يٰاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا
تَفْعَلُوْنَ ② كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ③ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ
سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ ④

نسبت د پاكي كوي الله لره هر هغه څيزونه چې په اسمانونو كې دي، او (هر هغه څيزونه چې) په ځمكه كې دي (سره له اسمانونو او ځمكې)، او همغه (الله) ښه غالب قوي دى، ښه حكمت والا دى. اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى ! ولې وايئ تاسې هغه (خبره) چې نه يې كوئ. لويه ده له جهته د غضبه په نزد د الله (دا خبره) چې وايئ تاسې هغه څه چې نه يې كوئ. بېشكه الله خوښوي هغه كسان چې جنګ كوي په لاره (د دين) د دغه (الله) كې صف تړونكي ګواكې دوى بناګانې په قلايي سره ټينګې كړى شوې (ښې محكمې).

تفسير: هر بنده ته ښايي چې له لويې، ځانمنې او باتې (لافې) وهلو او له ناحقو دعوى ځنې وويرېږي !، ځكه چې وروسته به په جنجال او ربړو كې اخته شي، له خولې څخه د يوې خبرې ايستل ډېر آسانه دي، مګر د هغې سر ته رسوونه ډېر سخت كار دى، الله تعالى له سره هغه سړي نه خوښوي چې په ژبه يو شى وايي، خو كول يې هسې نه وي، په رواياتو كې راغلي دي چې په يو ځاى كې څه مسلمانان ګرد سره ټول شوي وو؛ نو وئ ويل: كه مونږ ته دا خبره راښكاره شي چې الله تعالى د كوم كار له كولو څخه ډېر خوښيږي؛ مونږ ټول به همغه غوره كوو، په دې خبرې باندې دا آيتونه رانازل شول، چې خبردار وګورئ ! په احتياط سره خبرې كوئ !، دا ده ! در وايي خلئ، د الله تعالى په دربار كې هغه سړي ګران او زيات محبت ورسره كوي، چې د الله تعالى په لاره كې د هغه د دښمنانو په مقابل كې لكه د اوسپنې ديوال ټينګ ولاړ ودرېږي، او د جهاد په ډګر كې خپل معنوي صفونه داسې وتړي چې ګواكې داسې يو مضبوط دېوال دى چې له سريو څخه رېژېدلى شوى دى، او په هغه كې له هيڅ لوري كوم كنډاو او رخنه نه وي لوېدلې، نو اوس په دې معيار سره هر سړى خپل ځان ته وګوري ! نو هلته به دا خبره ورښكاره شي، چې په تاسې كې ډېر سړي داسې دي چې په دې معيار سره اكمل، كامل، جوړ او مناسب ښكاري، مګر ځينى به داسې څرګنديږي چې په ځينو مواقعو كې په ژبه او تشو وينا وو سره ډېر غړيږي مګر عمل يې د وينا دروغ څرګندوي.

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ لِمَ تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ

او (ياد كړه اى محمده ! هغه وخت) كله چې وويل موسى عليه السلام قوم خپل ته داسې چې: اى قومه ځما ! ولې اذيّت رسوئ تاسې ماته (په بد ويلو سره) حال دا چې په تحقيق پوهيږئ تاسې په دې چې بېشكه زه رسول د الله يم تاسې ته.

**تفسير:** يعنې د ښکاره دليلونو او څرګندو معجزاتو په ليدلو سره تاسې پخپلو زړونو کې باور کوئ چې زه د الله تعالى رښتين رسول او پيغمبر يم، بيا خو مې په ډېرو ناکاره او زړه خفه کوونکيو حرکتونو سره ولې ربړوئ؟.

فَلَمَّا زَاغُوٓا۟ أَزَاغَ ٱللَّهُ قُلُوبَهُمْ ۚ وَٱللَّهُ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلْفَٰسِقِينَ ﴿٥﴾

نو هر کله چې وګرځېدل دوی (له احکام الله نه)؛ نو وګرځول الله زړونه د دوی (له هدايت او يقين نه)، او الله نه ښيي سمه صافه لاره فاسقانو نافرمانانو ته.

**تفسير:** قاعده ده چې د ډېرو بديو کولو څخه زړه تک تور او سختيږي، تر دې چې د ښو کارونو لپاره په هغه کې هيڅ ځای نه پاتې کيږي، همدا حال د هغوی شو چې په هره خبره کې به يې د الله تعالى له رسولانو سره عناد او ضد او اختلاف کاوه، او درګرده به يې په کږو چالونو سره تنګ کاوه، تر څو چې مردود شول، او الله تعالى د هغوی زړونه هسې کاږه کړل چې د سمې خبرې د منلو صلاحيت هيڅ په کې پاتې نه شو، له داسې ضد کوونکيو نافرمانانو سره د الله تعالى همداسې عادت دی.

وَإِذْ قَالَ عِيسَى ٱبْنُ مَرْيَمَ يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ إِنِّى رَسُولُ ٱللَّهِ إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَىَّ مِنَ ٱلتَّوْرَىٰةِ

او (ياد کړه ای محمده ! هغه وخت) کله چې وويل عيسی ځوی د مريمې داسې چې: ای بني اسرائيلو (اولاده د يعقوب !) بېشکه زه رسول لېږلی شوی د الله يم تاسې ته، (حال دا چې) تصديق کوونکی يم د هغه کتاب چې وړاندې ځما دی له (تورات) څخه.

**تفسير:** يعنې اصلاً زه د دې خبرې تصديق کوم چې (تورات) د الله تعالى له لوري راغلی دی، او په اخبارونو او احکامو يې يقين او باور لرم، او ځما ګرد تعليم او ښوونې په حقيقت سره د همغو اصولو باندې مبني دی چې په (تورات) کې ښوولی شوي دي.

وَمُبَشِّرًۢا بِرَسُولٍ يَأْتِى مِنۢ بَعْدِى ٱسْمُهُۥٓ أَحْمَدُ ۖ

او زېری کوونکی يم په هغه رسول سره چې رابه شي وروسته له ما څخه چې نوم د هغه احمد دی.

**تفسير:** يعنې د ړومبني تصديق کوم، او د وروستني زېری اوروم، هسې خو نورو پخوانيو پيغمبرانو هم د خاتم الأنبياء د تشريف راوړلو زېری اورولی دی، خو په هغه صراحت او ښکاره ډول سره چې مسيح عليه السلام په ډېر اهتمام سره د محمد رسول الله صلی الله عليه وعلی آله وصحبه وسلّم د راتګ زېری اورولی دی، هغسې له نورو څخه نه دی منقول شوی، ښايي چې د قرب العهد له وجې دا خصوصيت د ده په برخه کې راغلی وي، ځکه چې وروسته له دوی څخه پرته د نبي آخر الزمان صلی الله عليه وسلم بل کوم پيغمبر راتلونکی نه دی.

فَلَمَّا جَآءَهُم بِٱلْبَيِّنَٰتِ قَالُوا۟ هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٦﴾

بيا کله چې راغی هغه (رسول) دوی ته په ښکاره وو معجزو سره؛ وويل (بني اسرائيلو) دا (قرآن) سحر کوډې دي ښکاره.

**تفسير:** يعنې مسيح عليه السلام سره له ښکاره نښو راغی، يا د هغه شي زېری يې چې ورکړی وو؛ احمد مجتبی مصطفی صلی الله عليه وسلم له هغو ښکاره وو معجزاتو سره راغی؛ نو خلقو هغه سحر کوډې او جادو وبللې.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعَىٰ إِلَى الْإِسْلَامِ ۚ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ⁽⁷⁾

او څوک دی ډېر ظالم (بلکه هیڅوک نشته) له هغه چا څخه چې له ځانه تړي په الله پورې دروغ، او (حال دا چې) دی بللی شوی دی طرف د اسلام ته، او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم ظالمانو بې انصافانو ته.

تفسیر: یعني کله چې هغوی ته د اسلام په لوري بلنه کیږي؛ نو حق پټوي، او له خپل ځانه دروغ جوړوي، او پر محمد صلی الله علیه وسلم باندې له ایمان راوړلو څخه مخ اړوي، هغوی پر الله تعالی د بشر یا په بشر باندې د الله حکم کوي، په اسماني کتابونو کې تحریفونه کوي، او له هغو شیانو څخه چې واقعیت او حقیقت لري منکریږي، او هغه شیان چې هیڅ حقیقت نه لري په اسماني کتابونو کې داخلوي، نو له دې څخه به لوی ظلم څه وي؟ او د الله تعالی له جانبه داسې بې انصافانو ته به هدایت چېرې په برخه کېدی شي؟.

يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ⁽⁸⁾

اراده لري، غواړي (منکران) چې مړه کړي رڼا د الله (شریعت د محمد) په خولو خپلو سره، او الله پوره کوونکی د رڼا خپلې دی، اګر که بد ګڼي دغه (اتمام د رڼا لره) کافران منکران.

تفسیر: یعني که کافران منکران بد وګڼي او خفه هم شي، خو سره له هغه پاک الله خپله رڼا پوره رڼوي، او د الله تعالی د مشیت په خلاف کوښښ کول هسې دي لکه چې کوم احمق د لمر رڼا پخپله خوله سره مړه کوي، همدا حال دی د محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم د مخالفانو او د مخالفانه وو زیار وو.

هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَىٰ وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ⁽⁹⁾

دغه (الله) هغه (ذات) دی چې رالیږلی یې دی رسول خپل (محمد) په هدایت سمه صافه لاره، او په دین حق لپاره د دې چې غلبه ورکړي (الله) دغه (حق دین) ته پر دینونو ټولو باندې، اګر که بده ګڼي (دغه غلبه) مشرکان.

تفسیر: په دې آیت باندې د (براءة) د سورت په تفاسیرو کې خبرې شوې دي، هلته دې وکتلی شي !.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَارَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ⁽¹⁰⁾ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَتُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ⁽¹¹⁾ يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی ! آیا دروښیم تاسې ته هسې تجارت سوداګري چې نجات درکوي خلاصوي تاسې له عذاب دردناک. (پس دغه تجارت او سوداګري کوئ چې هغه دا ده): ښه ټینګ محکم مضبوط اوسئ په ایمان باندې، چې لرئ یې په الله باندې او په رسول استاځي د دغه (الله)، او جهاد جنګ کوئ تاسې (ای مؤمنانو له دښمنانو د الله تعالی سره) په لاره د الله کې په اموالو خپلو سره، او په نفسونو خپلو سره (چې جنګ ته یې وړاندې کوئ)، دغه (ټینګ ایمان او مالي او جاني جهاد) خیر بهتر دی تاسې ته که چېرې یئ تاسې چې پوهېږئ؟. نو وبه ښښي (الله) تاسې ته ګناهونه د تاسې، او داخل به کړي تاسې په جنتونو کې چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو ویالې.

تفسير: يعنې دغه دين ته پر نورو اديانو باندې برى وركول د الله تعالى كار دى، خو پر تاسې باندې دا فرض دي چې پخپل ايمان باندې په ښه ډول سره مستقيم اوسئ !، او د هغه په لاره كې په ځان او مال سره جهاد وكړئ !، دا هغه تجارت او سوداګري ده چې هيڅ زيان په كې نشته، كه مسلمانان وپوهيږي نو دا تجارت د دنيا له ګردو تجارتونو څخه بهتر دى، ځكه چې د هغه ګټه كامله مغفرت او دائم جنّت دى، چې له هغه څخه پورته او ښه برى او مراد موندل بل نشته.

وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ

او (داخل به مو كړي) په ځايونو ښايسته وو پاكيزه وو كې (چې جوړ شوي دي) په جنّتونو د هميشه اوسېدلو كې.

تفسير: يعنې هغه پاكيزه مانۍ به د هغو جنّتونو په مخ كې وي چې هلته مؤمنان اوسيږي، دا خو د آخرت كاميابي ده، وروسته له دې د دنيا د اعلى او انتهايي كاميابۍ او برى ذكر هم راځي چې:

ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١٢﴾ وَاُخْرٰى تُحِبُّوْنَهَا ؕ نَصْرٌ مِّنَ اللّٰهِ وَفَتْحٌ قَرِيْبٌ ؕ

دغه (مغفرت او ادخال د مؤمنانو جنت ته) فوز عظيم، برى موندل، په مراد رسېدل ډېر لوى دي. او (الله تاسې ته اى مؤمنانو دركړى دى) بل (دنيوي نعمت چې) خوښوئ غواړئ تاسې هغه (نعمت) نصرت كومك حفاظت دى له (جانبه د) الله، او فتح قريب، برى نژدې دى.

تفسير: يعنې اصلي او لوى برى او كاميابي خو هغه ده چې په جنّت كې وركاوه شي، چې د هغه په مقابل كې د اوو اقليمو او د ټول جهان شهنشاهي هيڅ ده، خو په دنيا كې هم يو داسې شى تاسې ته دركاوه كيږي، چې هغه ستاسې په نزد طبعًا ډېره غوره او محبوب دى، او هغه ﴿نَصْرٌ مِّنَ اللّٰهِ وَفَتْحٌ قَرِيْبٌ ؕ﴾ دى، يعنې د الله تعالى له لوري يو ځان ته مخصوصه مرسته او امداد او ژر حاصل كېدونكې فتح او ظفر چې له دوى ځنې به هر يو له بل سره هسې تعلّق لري لكه خوله او لاس.

وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٣﴾

او بشارت زېرى وركړه (اى محمده !) مؤمنانو ته (په دنيوي فتح نصرت او اخروي مغفرت او جنّت).

تفسير: ځكه چې د دې زېري او بشارت اورول هم ځان ته يو مستقل بخشش او انعام دى.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْٓا اَنْصَارَ اللّٰهِ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى ! شئ تاسې مرسته كوونكي (د دين) د الله (لكه چې مرسته كړې وه حواريونو).

تفسير: يعنې د هغه الله تعالى د دين او د ده د رسول الله صلى الله عليه وسلم او استاځي مرسته كوونكي او مددګار شئ !، لكه چې د دې حكم د تعميل په اثر د الله تعالى په فضل او احسان او توفيق سره په مسلمانانو كې يو ځان ته فرقه د «انصارو» په نامه پيدا شوه.

كَمَا قَالَ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّنَ مَنْ أَنْصَارِيْ إِلَى اللّٰهِ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللّٰهِ

لکه چې ویلي وو عیسی ځوی د مریمې حواریونو (ملګرو خپلو) ته ! څوك دي مرسته کوونکي ځما په لاره د الله کې؟ نو وویل حواریونو (ملګریو د ده): مونږ یو مرسته کوونکي (د دین) د الله.

**تفسیر:** حوارین د مسیح علیه السلام یاران لږ څه ښه او غوره سړي وو، چې د خپل حسب او نسب په اعتبار سره دومره زیات معزّزان نه ګڼل کېدل، دوی د عیسی المسیح علیه السلام دین ومانه، او د عیسوي دین په دعوت او بلنه کې لویې قرباني ورکړې، تر څو یې چې په ښارونو او کلیو کې خپور کړ.

فَاٰمَنَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْۢ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ وَكَفَرَتْ طَّآئِفَةٌ ۚ فَاَيَّدْنَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا عَلٰى عَدُوِّهِمْ فَاَصْبَحُوْا ظٰهِرِيْنَ ﴿۱۴﴾

نو ایمان راووړ یوې طائفې ډلې له بني اسرائیلو نه (په عیسی باندې چې بنده د الله دی، پورته شوی دی اسمان ته)، او کافره شوه پرې بله طائفه ډله (چې ویل یې عیسی ځوی د الله دی، پس دواړو طائفو جنګ سره وکړ) نو قوّت مو ورکړ هغو ته چې ایمان یې راوړی وو پر دښمنانو د دوی باندې، پس وګرځېدل دوی غالبان (پر کافرانو).

**تفسیر:** یعنې بني اسرائیل په دوو فرقو وویشل شول، یوه یې په ایمان باندې قائمه پاتې شوه، او بلې له هغه څخه غاړه وغړوله، بیا د مسیح علیه السلام ځنې وروسته دوی دواړو سره منګولې ولګولې، او شخړې به یې سره کولې، په پای کې د الله تعالی په مرسته په دې مباحثو، مناظرو او جګړو کې عیسویانو پر منکرانو باندې برې وموند، او د مسیح علیه السلام پر نوم اخستونکي (نصاری) په یهودانو باندې غالب شول، وروسته له عمومي ګمراهۍ څخه د نصاراوو ځینې پاتې سړیو ته چې صحیح عقیده یې درلوده؛ حق تعالی څمونږ د نبي آخر الزّمان په وسیله پر نورو باندې برې او غلبه وروبښله، چې د دوی دا غالبیت او برې هم د حجّت او برهان په اعتبار او هم د سلطنت، قوّت او حیثیت له پلوه د افتخار وړ وو، فلله الحمدُ والمنّة.

تمت سورة الصف بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الجُمُعَةِ

«د (الجمعة) سورت مدني دی، (١١) آيتونه (٢) ركوع لري، په تلاوت كې (٦٢) او په نزول كې (١١٠) سورت دی، وروسته د (الصفّ) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿١﴾ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيّٖنَ رَسُولًا
مِّنْهُمْ يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٢﴾

نسبت د پاكي كوي خاص الله لره هر هغه څه چې په اسمانونو كې دي (له علويّاتو) او هر هغه څه چې په ځمكه كې دي (له سُفليّاتو) چې باچا ټولواک دی، ډېر پاک دی له هره عيبه، ښه غالب قوي دی، ښه حكمت والا دی. دغه (الله) هغه ذات دی چې پوره كړی لېږلی يې دی په أميّانو ناپوهانو كې يو رسول (محمّد) له دوی څخه، چې لولي پر دوی باندې آيتونه د دې (قرآن)، او پاكوي دوی (له شركه او له نورو رذيله وو اخلاقو)، او ښيي دوی ته كتاب (قرآن) او احكام (د قرآن)، اګر كه وو دوی پخوا له (بعثه د محمده) خامخا په ګمراهۍ ښكاره كې.

تفسير: «أُمّيين» نالوستو عربو ته چې په دوی كې علم او هنر هيڅ نه وو، نه يې كوم اسماني كتاب درلود، په معمولي ليك او لوست باندې هم د دوی ډېر لږ سړي پوهېدل، د دوی وحشت او جهالت په دنيا او نړۍ كې ضرب المثل وو، الله تعالى يې بالكل هېر وو، پر بت منلو او اوهامو غوښتلو، فسق او فجور باندې يې د ابراهيمي ملّت نوم اينبی وو، او تقريبا ګرد قوم په صريحې ګمراهۍ كې ډوب تللی وو، ناڅاپه د الله تعالى له لوري په دې قوم كې يو رسول مبعوث شو، چې د هغوی امتيازي لقب «نبيّ أُمّيّ» دی، خو سره د دې امّيتوب يې خپل قوم ته له ګردو څخه زيات عظيم الشأن كتاب راوړ، او وايې وراوه، او د علومو او معارفو او د حكمت او پوهنې عجيبې او غيبي خبرې وروښوولې، او دوی يې هسې پوهان او حكيمان كړل چې د نړۍ لويو لويو حكيمانو، پوهانو، علماوو، عرفاوو او نورو به له دوی ځنې د علم او معرفت او كريمه اخلاق زده كول.

وَّاٰخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ

او (الله پورته كړی لېږلی دی محمد لره په منځ د نورو راتلونكيو كې) له مؤمنانو چې نه دي رسيدلي دوی هغو (پخوانيو) ته (په فضيلت كې).

تفسير: يعنې همدا رسول الله صلى الله عليه وسلم د نورو راتلونكيو خلقو د هدايت لپاره هم يو واسِطه دی، ښايي هغوی ته د مبدأ او معاد او اسماني شرائعو باندې د صحيح علم او پوره پوهې د نه لرلو په واسطه مونږ أمّي او نالوستي ويلی شو، لكه د بلخ، هرات، سيستان، غزني، كابل، خراسان، پارس، روم، چين، هند او نور قومونه چې وروسته له دې نه د دې اميّونو په دين كې داخل او په اسلامي أخوّت، وروري كې شامل شول.

وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٣﴾

او دغه (الله) ښه غالب قوي دی ښه حکمت والا دی.

تفسیر: چې د هغه زبردست قوّت او حکمت د دې جلیل القدر پیغمبر په وسیله تر قیامت پورې د عربو او عجمو د تعلیم او تزکیې انتظام وفرمایه، صلی الله علیه وعلی آله وأصحابه وسلّم.

ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٤﴾

دغه (نبوّت) فضل لوی د الله (له طرفه) دی چې ورکوي يې هغه چاته چې اراده وفرمايي د ورکولو يې، او الله څښتن د فضل ډېر لوی دی.

تفسیر: يعنې الله تعالی محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته داسې لويي ورکړه، او دې امّت ته يې داسې د لويې مرتبې څښتن رسول ورواباښه، وروسته له دې نه د يهودانو مثال د عبرت په ډول بيانوي، چې هغوی د خپل پیغمبر په کتاب کې ډېر زيات غفلت، بې پروايي کړې ده.

مَثَلُ الَّذِينَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوهَا كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا ۚ

مثال د هغو کسانو چې مکلّف کړی شوي وو هغوی په «تورات» (چې پرې عمل وکړي)، بيا بار نه کړ هغوی هغه (تورات چې عمل يې پرې ونه کړ، مثال د دغو کسانو چې علماء د يهودو دي) په مثال د خره دی، چې په شا وړي کتابونه، او نفع ترې نشي اخيستی.

تفسیر: يعنې پر يهودانو باندې د «تورات» پېټی اېښود شوی وو، او دوی د هغه ذمّه وار ګرځولي شوي وو، خو هغوی د هغه د تعليماتو او هداياتو هيڅ پروا ونه کړه، او نه يې محفوظ وساتل، او نه يې پخپلو زړونو کې ځای ورکړ، او نه يې پرې عمل وکړو، او نه د الله تعالی له هغو فضلونو او انعامونو څنې ګټور شول چې د هغو له لوري هغوی ته ورعطا او ښنلي شوي وو، بېشکه هغه «تورات» چې دوی يې حاملان ټاکلي شوي وو؛ د ربّاني هدايتو او حکمتونو يوه لويه خزانه وه، نو کله چې دوی له هغه څخه منتفع نه شول، نو د دوی مثال هسې شو لکه چې يو خر چې د علم او د حکمت ډېر لوی کتابونه پرې بار شوي وي، نو هغه ته پرته له دې څخه چې د هغه پېټي لاندې سترې ستومان شي بله کومه ګټه نه وررسيږي.

بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِ اللَّهِ ۚ

ډېر بد دی مثال د قوم هغه (کسانو) چې دروغ ګڼي د الله تعالی آيتونه.

تفسیر: يعنې خراب قوم دی هغه قوم چې د هغوی مثال داسې وي، الله مو دې ترې پخپله پناه کې وساتي !، الله تعالی په «تورات» او نورو کتابونو کې کوم زېرې چې د نبي آخر الزّمان په نسبت ورکړی دی، او هغه دلائل او براهين چې د دوی پر رسالت باندې قائم دي، د هغو دروغ بلل د الله تعالی آيتونه دروغ ګڼل دي.

وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿٥﴾

او الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم ظالمانو ته (کافرانو ته).

تفسیر: يعنې هسې معاندانو زوورانو او بې انصافانو ته د هدايت توفيق نه ورکوي.

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ هَادُوٓا۟ إِن زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَآءُ لِلَّهِ مِن دُونِ ٱلنَّاسِ فَتَمَنَّوُا۟ ٱلْمَوْتَ إِن كُنتُمْ
صَٰدِقِينَ ٦ وَلَا يَتَمَنَّوْنَهُۥٓ أَبَدًۢا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۚ وَٱللَّهُ عَلِيمٌۢ بِٱلظَّٰلِمِينَ ٧

ووايه ته (اى محمده !) اى هغو كسانو چې يهودان شوي يئ ! كه ګمان دعوى كوئ تاسې (د دې) چې بېشكه تاسې دوستان يئ د الله پر ته له نورو خلقو (چې مؤمنان دي)؛ نو (فرمايي الله) ارزو وكړئ د مرګ كه چېرې يئ تاسې صادقان رښتيني (په دغه ادّعاء د دوستى كې). حال دا چې وبه نه كړي دوى ارزو د دغه (مرګ) هيچېرې په سبب د هغو كارونو چې مخكښې ليږلي دي لاسونو د دوى، او الله ښه عالم دى (په احوالو د) ګردو ظالمانو.

تفسير: يعني سره له دې ناپوهى، جهل او حماقت داسې دعوى كوي چې مونږ بې د نورو له شركته د پاك الله دوستان يو، او جنّت واكوالان او حقداران يو، كله چې له دنيا ځخه ولېږو؛ نو سمدلاسه جنت ته ځو، كه په رښتيا سره دوى خپلو زړونو كې داسې يقين لري، او پخپلو دغو دعوو كې رښتين دي؛ نو ضرور وو چې دوى د دنيا له مكدّر عيش ځخه خپل زړونه شكولي او د حقيقي محبوب او د جنّت الفردوس په تمنّا كې به يې د مرګ ارزو كوله، ځكه هغه چاته چې دا خبره يقيناً ښكاره وي چې ځما درجه د الله تعالى په دربار كې ډېره لويه ده، او هلته ځما لپاره هيڅ يوه خطره او وېره نشته، نو هغه بېشكه په مړ كېدلو باندې خوښيږي.

تنبيه: په همدې مضمون يو بل آيت د (البقرة) په سورت ځمونږ د دغه مبارك تفسير كې هم تېر شوى دى، دلته دې هم د هغه تفسير بيا وكتل شي، د ځينو اسلافو په نزد د موت د تمنّا مطلب «مباهله» وه، يعني معاندانو يهودانو ته وويل شو: كه «هغوى په رښتيا سره د خپلو اولياء كېدلو يقين لري، او مسلمانان په باطلو باندې ګڼي؛ نو داسې تمنّا دې وكړي د دواړو فريقينو له منځه هر څوك چې دروغجن وي؛ مړ دې شي !»، مګر هغوى به هيځكله داسې نه كوي، ځكه چې هغوى ته د دوى د كذب او د ظلم يقين حاصل دى، ابن كثير او ابن القيّم (رحمهما الله) او نورو هم دا توجيه غوره كړېده، والله أعلم.

قُلْ إِنَّ ٱلْمَوْتَ ٱلَّذِى تَفِرُّونَ مِنْهُ فَإِنَّهُۥ مُلَٰقِيكُمْ ۖ ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَٰلِمِ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ
تَعْمَلُونَ ٨

ووايه (اى محمده ! دغو يهودانو ته) بېشكه مرګ هغه چې تښتئ تاسې له هغه نه (او نه يې غواړئ) پس بېشكه هغه مرګ ضرور رسېدونكى دى تاسې ته، بيا به بوتلى شئ تاسې په لوري د (هغه) ښه پوهيدونكي په پټو او په ښكاره وو باندې، پس خبر به كړي تاسې په هغو (كارونو باندې) چې وئ تاسې چې كول به مو (په دنيا كې؛ نو جزاء به پرې دركړي).

تفسير: يعني اى يهودانو ! كه تاسې له مرګه وېرېږئ؛ نو چېرې به تښتئ او ځئ؟ كه په زرګونو ځلي كوښښ هم وكړئ، او په هسې كلكو كلاوو كې سنګر (مورچه) ونيسئ چې وروبه يې تړلي وي؛ نو هلته به هم له مرګه نه خلاصيږئ، او وروسته له مرګه بيا همغه د الله تعالى عدالت دى او تاسې.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓا۟ إِذَا نُودِىَ لِلصَّلَوٰةِ مِن يَوْمِ ٱلْجُمُعَةِ فَٱسْعَوْا۟ إِلَىٰ ذِكْرِ ٱللَّهِ وَذَرُوا۟ ٱلْبَيْعَ ۚ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى ! كله چې اذان وويل شي لپاره د لمانځه په ورځې د جمعې كې؛ نو ځغلئ منډې ووهئ طرف د ذكر د الله ته، او پرېږدئ (بيع او شراء ـ پلورل او پېرودل).

تفسير: شاه صاحب ليکي: «د هر اذان حکم داسې نه دی، ځکه چې بل جماعت هم موندل کيږي، او د جمعې لمونځ په يوه مسجد کې اداء کيږي، په بل ځای کې نه اداء کيږي»، او د الله تعالى له ياده څخه خطبه مراد ده، او لمونځ د هغه په عموميت کې داخل دی، يعني په داسې وخت کې ښايي چې مونږ مسجد ته ورشو، چې خُطبه واورو، په دې وخت کې پلورل او پېرودل (اخيستل او خرڅول) حرام دي، او له منډې وهلو او ځغلېدلو او سعي څخه په پوره اهتمام او استعداد سره ورتګ مطلوب دی، او منډې وهل مراد نه دي.

تنبيه: په قرآنکريم کې له ﴿نُوۡدِیَ﴾ څخه هغه اذان مراد دی، چې د دې آيت د نزول په وخت کې وو، يعني هغه اذان چې امام ته مخامخ پخوا له خُطبې څخه ورکاوه کيږي.

ذٰلِكُمۡ خَيۡرٌ لَّكُمۡ إِن كُنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۝٩

دا (تګ لمانځه ته) خير بهتر ډېر غوره دی تاسې ته که چېرې يئ تاسې چې پوهېږئ (په أخروي نفع او نقصان خپل).

تفسير: ښکاره ده چې د أخروي ګټې په مقابل کې دنيوي فائدې هيڅ يو حقيقت نه لري.

فَإِذَا قُضِيَتِ ٱلصَّلَوٰةُ فَٱنتَشِرُواْ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَٱبۡتَغُواْ مِن فَضۡلِ ٱللَّهِ وَٱذۡكُرُواْ ٱللَّهَ كَثِيرٗا لَّعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ۝١٠

نو هر کله چې اداء کړی شي لمونځ (د جُمعې)؛ پس خواره شئ تاسې په ځمکه کې (خپلو حوائجو ته که يې لرئ)، او ولټوئ تاسې له فضله د الله، او يادوئ تاسې الله (په يادولو) ډېرو سره، ښايېږي چې وموموئ تاسې ښېګڼې خلاصی، مراد.

تفسير: شاه صاحب (رحمه الله) ليکي: «د يهودانو په نزد د عبادت ورځ د شنبې ورځ وه، چې په ګرده ورځ کې سود سودا منع وه، نو ځکه يې وفرمايل چې: وروسته له لمانځه څخه د روزۍ په لټولو پسې وګرځئ !، او په هغه وخت کې هم تاسې د الله تعالى له ياده غافل مه اوسئ !.

وَإِذَا رَأَوۡاْ تِجَٰرَةً أَوۡ لَهۡوًا ٱنفَضُّوٓاْ إِلَيۡهَا وَتَرَكُوكَ قَآئِمٗاۚ قُلۡ مَا عِندَ ٱللَّهِ خَيۡرٞ مِّنَ ٱللَّهۡوِ وَمِنَ ٱلتِّجَٰرَةِۚ
وَٱللَّهُ خَيۡرُ ٱلرَّٰزِقِينَ ۝١١

او کله چې ووينې دوی تجارت سوداګري يا کومه لهو تماشا ننداره؛ نو خوريږي دوی په لوري د هغې، او پريږدي دوی تا ولاړ (خُطبه ويونکی پر منبر)، ووايه (ای محمده ! دوی ته) هغه څه (ثواب) چې په نزد د الله دی خير ډېر بهتر غوره دی له لهوې تماشې ننداري او له تجارت سوداګرۍ څخه، او الله خير ډېر بهتر غوره له ګردو رزق روزۍ ورکوونکيو دی.

تفسير: يو ځلې رسول أکرم صلى الله عليه وسلم د جُمعې په ورځ خُطبه فرمايله، چې د سوداګرانو جوپې له باندې ځنې خواره او غله راوړه، چې له هغه سره د خبرتيا لپاره طبل تغارې او ډمامې هم وهلې کېدې، څرنګه چې په ښار کې غله ډېره لږه وه؛ نو خلقو ورمنډې وهلې چې هغه جوپه واړوي، ګواکې دوی داسې ګڼل چې د خطبې حکم هم لکه د نورو وعظونو غوندې دی، چې په هغو کې د ضرورت په وخت کې سړی پاڅېدی شي، او بيا لمانځه ته ځان ور رسوي، يا به لمونځ شوی وي لکه چې د ځينو قول دی چې: په هغه وخت کې د جمعې لمونځ پخوا له خُطبې څخه کېده، په هر حال د خُطبې احکام لا ښه ښکاره نه وو، چې خُطبه هم د لمانځه په شان ده، ډېر خلق لاړل، رسول صلى الله عليه وسلم سره له دولسو سړيو چې په هغوی کې راشد خلفاء هم وو پاتې شول، نو په دې نسبت دا آيت را نازل

شو، يعنې سوداګري او د دنيا لوبې او تماشې څه شی دي، هغه ابدي ګټه حاصله کړئ !، چې له الله تعالی سره ده، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحبت او مجلس په برکت او د ذکر او عبادت څخه په لاس راځي، پاتې شوه هغه اندېښنه چې تاسې ته د خوړو او قحط له پلوه پيدا شوې وه، او د هغې لامله داسې ولټېدلئ نو په ياد يې ولرئ چې رزق روزي د الله تعالی په لاس کې ده، او همغه ډېر ښه روزي ورکوونکی دی، او د هغه مالك هيڅ يوه بنده ته نه ښايي چې په دې باره کې اندېښنه وکړي، وروسته له دې تنبيه څخه د صحابه وو شان داسې وو چې د (النور) په سورت کې راغلی دی: ﴿رِجَالٌ لَّا تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلَا بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ﴾.

تنبيه: لهو هر هغه شي ته وايه شي چې سړی د الله تعالی له ياده وباسي، لکه لوبې، ننداري، او ښايي چې د هغې طبل، تغارې او ډمامې غږ ته لهو ويلې شوي وي.

تمّت سورة الجمعة بفضل الله ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ المُنَافِقُونَ

«د (المنافقون) سورت مدني دی، (۱۱) آیته (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۶۳) او په نزول کې (۱۰۴) سورت دی، وروسته د (الحجّ) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا جَآءَكَ الْمُنٰفِقُوْنَ قَالُوْا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللهِ ۘ وَاللهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُوْلُهٗ ؕ وَاللهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَكٰذِبُوْنَ ۚ﴿۱﴾

کله چې راشي تاته (ای محمده) منافقان نو وايي دوی: شاهدي ورکوو مونږ چې بېشکه ته خامخا رسول د الله يې، او الله ته معلوم دي چې بېشکه ته خامخا رسول د دغه (الله) يې، او الله شاهدي ورکوي په دې چې بېشکه منافقان خامخا دروغجنان دي (په دې شهادت خپل کې).

تفسیر: يعنې منافقان دروغ وايي چې: هغوی له زړه ستا په رسالت باندې اعتقاد لري، په رښتيا سره هغوی ستاسې په رسالت قائل نه دي، او يواځې د خپلو اغراضو لامله په ژبه سره داسې خبرې کوي، او پخپلو زړونو کې وايي چې: مونږ دا خبرې په دروغو سره وايو، بيا ددوی دروغ په دې خبره باندې نه دي منحصر بلکه دروغ ويل ددوی امتيازې خصلت او شعار ګرځيدلي دي.

اِتَّخَذُوْۤا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً

نيولي دي دوی قسمونه خپل ډالونه (چې پرې ساتي سرومال خپل).

تفسير: يعنې په دروغو سره قسمونه خوري چې مونږ مسلمانان يو، او د اسلامي مجاهدينو له لاسه د خپلو ځانونو او مالونو د ساتنې لپاره د داسې قسمونو تر سيوري لاندې خپلې شپې او ورځې تېروي، کله چې له دوی څنې د پوښتنې وړ کوم کار څرګنديږي، او د مسلمانانو له لوري د مؤاخذې وېره پيدا کيږي؛ نو سمدلاسه دوی په ناحقو قسمونو يادولو باندې شروع کوي.

فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللهِ ؕ اِنَّهُمْ سَآءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۲﴾

پس اړوي (دوی خلق په دغو قسمونو سره) له لارې د الله څخه، بېشکه دوی چې دي بد دی هغه عمل چې دي دوی چې کوي يې.

تفسير: يعنې د اسلام او مسلمانانو په نسبت طعن، تشنيع وايي او عيبونه يې لټوي، او د اسلام له ننوتلو څخه نور خلق منع کوي، او خلق هم د دوی په ښکاره مسلمانۍ باندې غوليږي، نو د دوی د دروغو قسمونو ضرر او فساد تر دوی پورې محدود نه پاتې کيږي، بلکه نورو ته هم متعدّي کيږي، نو له دې څخه به لويه خرابي څنګه وي؟.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ③

دا (بدي د عمل د منافقانو په سبب د دې ده چې) بېشکه دوی ایمان راوړی دی (لسانًا) بیا کافران شوي دي، بیا مهر وهلی شوی دی په زړونو د دوی باندې؛ پس دوی نه پوهېږي.

**تفسیر:** یعنې په ژبه سره د ایمان دعوی کوي، او په زړه کې له هغوی څخه انکار کوي، سره د ایمان د دعوی د کافرانو په شان کارونه کوي، د دې بې ایمانۍ او انتهایي مکر او فریب او اثر داسې شو چې د هغوی په زړونو باندې مهر ولګېد، چې پر هغوی د ایمان، خیر، صداقت او امانت ګردې لارې وتړلې شوې، او هیڅ یو ښه شی په هغه کې نه ځاییږي، ښکاره ده چې اوس دې حالت ته رسیدلي دي چې له هغوی څخه د پوهېدلو او په لار راتللو هیڅ یوه هیله او توقّع نشي کېدی، کله چې د سړي زړه د بدکاریو او د بې ایمانیو څخه بالکل خراب او مسخ شوی وي؛ بیا نو په دې کې د ښه او بد پوهېدلو هیڅ صلاحیت نه پاتې کیږي.

وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ ۖ وَإِنْ يَقُولُوا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ۖ

او کله چې ووینې ته دوی؛ په تعجّب کې تا اچوي اجسام جثې بنې د دوی له جهت د ښایست، او که خبرې کوي دوی؛ اورې غوږ ږدې ته خبرو د دوی ته له جهته د فصاحته او بلاغته.

**تفسیر:** یعنې زړه خو مسخ شوی دی، مګر که بنې (جسم) ته وکتل شي؛ ډېر ډولي، ښایسته، روغه رمټه، لویه درنده ښکاري، په خبرو اترو کې ډېر غوړ او ښه غږیږي، په فصاحت او بلاغت کې بې مثال او بې نظیر ښکاري، او خامخا د اوریدونکي فکر او توجّه ځان ته واړوي، او د هغه د خبرې د ظاهري سطحې له لیدلو څخه هر سړی د هغه منلو او باور کولو ته حاضریږي.

كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُسَنَّدَةٌ ۖ

حال دا چې په واقع کې ګواکې دوی لرګي وچ دي درولي شوي دېوال ته.

**تفسیر:** هغه وچ او بېکاره لرګي چې له دیوالونو سره یې لګولي دروي، محض بې ځان او لایعقل او د نشوونما او د ودې څخه بې برخې وي، په لیدلو سره ډېر لوی او پنډ ښکاري، مګر یوه شیبه هم بې له تکیې او استناده نه شي ودرېدی، هو یواځې د سوځولو په کار راتلی شي، همدا حال د دې خلقو دی چې د هغوی ښه شکل او ښایسته جثه او ښکاره ډول وډیل ډېر ښه ښکاري، خو په منځ کې تش او بې ځان وي، او یواځې د دوزخ خس کېدی شي.

يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ ۚ

ګڼي دوی هر غږ (هسې چې بلاء راغله) پر دوی باندې.

**تفسیر:** هسې بزدل، نامرد او ویریدونکي دي، چې په لږ شوروشر سره د هغوی زړونه لړځیږي، او داسې ګڼي چې سمدلاسه پر مونږ باندې کومه لویه بلا یـا آفت راتلونکی دی، د خپلو درنو جرمونو، درغلیو، دروغو او خیانت لامله هر کله د هغوی په زړونو کې دغه اندېښنه او ویره لوېدلې وي.

هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ ۚ

همدوی دي دښمنان (د مؤمنانو) نو ځان وساته ته له دوی څخه.

تفسير: يعنې لوی ويروونكي دښمنان او غليمان همدوی دي، د دوی له مكرونو او چالونو څخه تل خبردار شئ !، او بې غمه او بې اندېښنې مه ترې كښېنئ !.

قَاتَلَهُمُ اللَّهُ أَنَّىٰ يُؤْفَكُونَ ﴿۴﴾

هلاک دې کاندي دوی لره الله، څرنګه ګرځولی شوي دي دوی (له سمې صافې لارې نه).

تفسير: يعنې وروسته د ايمان له اظهاره دا بې ايماني، او پس له دې نه چې د حق او صداقت په رڼا كې ننوتلي دي، د دوی دا ظلمت ـ تياره خوښول ډېر عجيب او حيرانوونكي دي.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللَّهِ لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُم مُّسْتَكْبِرُونَ ﴿۵﴾

او كله چې وويل شي دوی ته راشئ (په عذر غوښتلو سره) چې ښښنه وغواړي تاسې ته (محمد) رسول د الله؛ تاو کړي دوی سرونه خپل (مخ ترې اړوي) او وينې ته دوی چې څنګ كوي (له درتللو نه په خدمت د تا) حال دا چې وي دوی لويي كوونكي (له توبې او استغفار نه).

تفسير: يعنې كه چېرې د دې منافقانو كوم شرارت په صاف ډول سره څرګند شي، او د دوی د كذب او د خيانت پرده وشليږي؛ نو خلق دوی ته وايي: اوس لا هم وخت شته، ورځئ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت كې حاضر شئ، او د هغوی په وسيله د الله تعالى له لوري خپلې ښښنې وغواړئ، تر څو الله تعالى د رسول الله صلى الله عليه وسلم د استغفار په وجه ستاسې دا خطاوې وبښي؛ نو دوی د لويي او تكبّر او غرور له پلوه غاړې غړوي، او سرونه اړوي، او اوړې پورته غورځوي، او خپله بې پروايي ښكاروي، بلكه ځينې كمبختان په غوړه ژبه سره وايي چې: مونږ ته د رسول الله د استغفار هيڅ ضرورت نشته.

سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ لَن يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿۶﴾

برابره ده پر دوی باندې چې ښښنه غواړې ته (ای محمده !) دوی ته او كه ښښنه نه غواړې ته (ای محمّده !) دوی ته، له سره به ښښنه نه كوي الله دوی ته، بېشكه الله نه ښيي سمه صافه لاره قوم فاسقانو، نافرمانانو ته.

تفسير: يعنې ممكن دي چې تاسې له ډېر رحمت او شفقت له كبله د هغوی په موجوده حالت باندې زړه سوی وكړې، او هغوی ته ښښنه وغواړئ، مګر الله تعالى په هيڅ صورت سره هغوی نه بښي، او داسې نافرمانانو ته د هغه په لوري د هدايت توفيق نه وركاوه كيږي.

هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِندَ رَسُولِ اللَّهِ حَتَّىٰ يَنفَضُّوا ۗ

دوی هغه كسان دي چې وايي (خپلو ملګرو ته) مه وركوئ نفقه، مه لګوئ تاسې مال په هغه چا باندې چې په نزد د رسول الله دي (له فقراوو د مهاجرينو) تر څو چې متفرّق خواره شي دوی (ترې).

تفسير: په يو سفر كې دوه تنه سره په جنګ شول، چې يو مهاجر او بل انصاري وو، هر يوه له دې دواړو څخه خپلو ملګرو ته غږ كړ، او يوه لويه شخړه ترې جوړه شوه، كله چې دا خبر د منافقانو مشر «عبد الله بن أُبَيّ بن سَلُول» ته ورسېد؛ نو ويې ويل: « كه مونږ دغو مهاجرينو ته پخپلو كورونو كې ځای نه وركولی؛ نو دوی به ولې ځمونږ په مخ

کې داسې پورته کېدل، همدا تاسې يئ چې د دوی پالنه کوئ، چې دوی د دې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په شاوخوا کې سره ګرځي، تاسې د دوی دا خبر اخيستل او پوښتېدل پر پرېږدي، نو دوی د خپلو خوړو له لاسه په تنګ کيږي، او ګرد سره خواره کيږي، او د دوی دا ټولنه سره تار په تار کيږي»، دا يې هم وويل: که مونږ له دې خپل سفره بېرته وګرځېدو، او مدينې ته ورسېدو؛ نو ښايي هغه کسان چې د زور او اقتدار خاوندان دي نور سپک، ذليل او بې قدر خلق وشړي !، يعني مونږ چې مالدار، او عزتمندان يو؛ ښايي دا خوار مسلمانان له مدينې څخې وباسو، يو صحابي چې زيد بن أرقم رضي الله تعالی عنه نوميده، کله چې دا خبرې يې واورېدې، هغه يې يو په يو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته واورولې، رسول الله صلی الله علیه وسلم عبد الله بن أُبَيّ او نور سرې خپل مخ ته ورغوښتل، او لازمه تحقيقات يې وفرمايل، نو منافقانو په قسم خوړلو باندې شروع وکړه، او ټولو سره وويل چې: دا ګردې خبرې دروغ دي، چې د زيد بن أرقم رضي الله تعالی عنه له لوري څمونږ په خلاف په دښمنی سره جوړې شوي دي، نو خلقو پر زيد رضي الله تعالی عنه باندې په مسخرو شروع وکړه، او دی ډېر خفه، نادم او محجوب وو، په دې وخت کې دا آيتونه رانازل شول، نو رسول الله مبارک زيد رضي الله تعالی عنه راوغوښت، او ورته ويې فرمايل: چې ته د الله تعالی له لوري رښتين شوې.

وَلِلَّهِ خَزَآئِنُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلَٰكِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَا يَفْقَهُونَ ۝٧

او خاص الله لره دي خزانې د اسمانونو او د ځمکې، وليکن منافقان نه پوهيږي.

**تفسير:** يعني دا احمقان ناپوهان منافقان دومره هم نه پوهيږي، چې د ګردو اسمانونو او د ځمکو د خزانو مالک الله تعالی دی، نو آيا هغه خلق به چې يواځې د هغه د خوښې لپاره د ده د رسول په خدمت کې سره بوخت دي، په لوږه سره وژني؟، او که خلق په هغوی باندې د خوړو ورونه وتړي؛ نو الله تعالی به هم د خپلو خوړو او رزق ور پر دوی باندې وتړي؟، بلکه نه يې تړي، رښتيا خو دا ده: هغه بندګان چې پر دې «اهل الله» باندې خپل مالونه لګوي، هغه هم پر هغوی باندې پاک پروردګار کوي، که د هغه له لوري دوی ته توفيق په برخه نه شي؛ نو په ښو کارونو کې به يو پول او پيسه ونه لګوي.

يَقُولُونَ لَئِن رَّجَعْنَآ إِلَى ٱلْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ ٱلْأَعَزُّ مِنْهَا ٱلْأَذَلَّ ۚ وَلِلَّهِ ٱلْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَٰكِنَّ ٱلْمُنَٰفِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ۝٨

وايي منافقان: که چېرته بېرته وګرځو مونږ د مدينې طرف ته، نو خامخا به وباسي هرومرو ډېر عزتمن ډېر خوار کمزور خلق، او خاص الله لره دی عزّت او غلبه او رسول د ده لره دی او مؤمنانو لره دی، وليکن منافقان نه پوهيږي.

**تفسير:** يعني منافقان په دې باندې نه پوهيږي چې زورور او عزّتمن څوک دي؟ په ياد يې ولرئ چې اصلي او ذاتي عزت خو د الله تعالی دی، وروسته له هغه له الله تعالی سره د علاقه لرونکو ذواتو دی، چې درجه په درجه د هغه د تعلّقاتو له مخې مراتب لري، يعني بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم او د نورو مؤمنانو دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَٰلُكُمْ وَلَآ أَوْلَٰدُكُمْ عَن ذِكْرِ ٱللَّهِ ۚ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْخَٰسِرُونَ ۝٩

ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی ! مشغول غافل دې نه کړي تاسې مالونه ستاسې او نه اولاد ستاسې له ذکره ياده د الله څخه، او هغه څوک چې وکړي دا کار؛ نو همدغه کسان همدوی دي زيانکاران.

**تفسير:** يعنې هر سړي ته دا لوی زيان دی چې باقي دولت پرېږدي، او په فاني پسې وردرومي، او له اعلی ځنې مخ اړوي، او په ادنی کې پرېوځي، همغه مال او اولاد ښه ګڼه شي چې سړی د الله تعالی له ياده نه غافلوي، او د آخرت له کاره يې نه وباسي، که کوم سړی په دې شيانو کې داسې اخته کيږي، او له الله تعالی ځنې غافليږي؛ نو آخرت يې له لاسه ووت، او د دنيا په جنجالونو کې هسې کېووت، چې هغه ته به د زړه ډاډينه او اطمينان هيڅ په نصيب کې نه وي: ﴿وَمَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِيْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا وَّنَحْشُرُهٗ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَعْمٰى﴾.

وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَآ اَخَّرْتَنِيْٓ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍۙ فَاَصَّدَّقَ وَاَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللّٰهُ نَفْسًا اِذَا جَآءَ اَجَلُهَاؕ

او نفقه کړئ ـ ولګوئ تاسې له هغو مالونو څخه چې درکړي مو دي تاسې ته پخوا له هغه ځنې چې راشي يو ستاسې ته (اسباب) د مرګ، نو وبه وايي: ای ربه ځما ! ولې دې وروستی نه کړ ما لره تر اجل نېږې نږدې پورې چې صدقه خيرات وکړم زه، او شم زه له صالحانو نېکانو څخه. (نو فرمايي الله) او له سره به نه وروستی کوي الله هيڅ نفس لره (له مرګه) کله چې راشي نېټه يې.

**تفسير:** دا ښايي د منافقانو د دې وينا ځواب وي چې: ﴿لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ﴾ الآية ـ دی، يعنې په خرڅ کولو کې ستاسې ښه ده، هر څه خيرات او صدقات مو چې له لاسه پوره وي؛ هغه ژر تر ژره همدا اوس وکړئ !، که نه موت او مړينه مو پر سر رسېدونکې ده، نو هلته به افسوس او ارمان کوئ چې ولې مو څه د الله تعالی په لاره کې ونه لګول؟ کله چې مرګ د شوم او بخيل په سر باندې راځي؛ نو هلته دی ارزو او تمنّا کوي، چې ای الله تعالی ! څو ورځې نور مې په مرګ کې ډيل او معطلي وفرمايه !، چې زه ښه خيرات صدقات ورکړم، او ځان ښه سنبال کړی په اصلاح او توبه راشم، خو هلته به کله مهلت ورکاوه کيږي؟ هر سړي لره هومره عمر او نېټه او ميعاد چې ټاکلی شوی دی؛ د هغه د پوره کېدلو څخه وروسته د يوې لحظې لپاره هم په هغه کې څه ډيل او تأخير پېښېدونکی نه دی.

وَاللّٰهُ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ۝

او الله ښه خبردار دی په هغه څه (ښه او بد) چې کوئ يې تاسې (نو جزا به پرې درکړي).

**تفسير:** يعنې هغه الله تعالی ته دا خبره هم ښه ورمعلومه او ښکاره ده، که بالفرض ستاسې مرګ ملتوي کړي، يا مو له محشره د دنيا په لوري بېرته ورولېږي، نو هلته به بيا څرنګه چارې وکړئ؟.

تمت سورة المنافقون بفضل الله تعالی.



# سُورَةُ التَّغَابُنِ

«د (التغابن) سورت مدني دی، (۱۸) آیته دوه رکوع لري، په تلاوت کې (۶۴) او په نزول کې (۱۰۸) سورت دی، وروسته د (التحریم) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۖ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ① هُوَ
الَّذِي خَلَقَكُمْ فَمِنكُمْ كَافِرٌ وَمِنكُم مُّؤْمِنٌ ۚ

نسبت د پاکۍ کوي الله ته هر هغه چې په اسمانونو کې دي (له علویّاتو سره له اسمانونو) او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي (له سفلیّاتو سره له ځمکې)، خاص همدغه (الله) لره دی ملک باچايي، او هم ده لره ټوله ثنا ستاینه ده، او همدغه (الله) په هر شیز باندې ښه قادر دی. همدغه (الله) هغه ذات دی چې پیدا کړي يې يئ تاسې، پس ځينې له تاسې کافر دي، او ځينې له تاسې مؤمن دي.

تفسیر: د هر چا حکومت او ټولواکي چې په دنیا کې کې لیده کېږي؛ په حقیقت کې هغه د الله تعالی سلطنت او ټولواکي ده، او د هر سړي چې ستاینه او تعریف کاوه شي، هغه په واقع سره د همغه الله تعالی حمد، ثنا او ستاینه ده، همدغه پاک الله تعالی ځمونږ او د ګردو مخلوقاتو خالق او پیدا کوونکی دی، او ښايیږي چې ګردو به په ده باندې ایمان راوړی وي، او د هغه حقیقي منعم اطاعت به يې کړی وي، مګر ځينې کسان منکران شول، او ځينې ایمانداران وګرځېدل، بېشکه چې الله تعالی هر سړي ته داسې یو قوّت او استعداد وربښلی دی، چې د هر لوري د حرکت او د تګ قوّت په کې شته، الله تعالی ړومبی ګرد خلق په صحیح فطرت سره پیدا کړل، بیا ځينې پخپل همغه صحیح فطرت باندې ټینګ پاتې شول، او ځنې نور له شاوخوا له حالاتو څخه متأثر شول.

وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ② خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ ۖ وَإِلَيْهِ
الْمَصِيرُ ③

او الله په هغه څه چې کوئ تاسې ښه لیدونکی دی. پیدا کړي يې دي اسمانونه او ځمکه په تدبیر حق سره، او صورتونه يې ترلي دي ستاسې بیا يې ښایسته کړي دي صورتونه ستاسې، او هغه (الله) ته بېرته ورتلل دي ستاسې.

تفسیر: په ګردو ساکښانو (ذي روحو) کې د انسان خلقت ښه دی، په لیدلو کې ډېر ښه ښکاري، پخپلو ملکاتو او قواوو هم له ګرد عالم څخه لوړ، غوره او ممتاز دی، بلکه د ټولو ښو مجموعه ده.

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُسِرُّونَ وَمَا تُعْلِنُونَ ۚ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ④
أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَبْلُ فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ⑤

ښه معلوم دي دغه (الله) ته هغه څه چې په اسمانونو او په ځمکه کې دي، او ښه معلوم دي دغه (الله) ته هغه څه چې پټوئ تاسې او هغه څه چې ښکاره کوئ يې تاسې، او الله ته ښه معلوم دي هغه پټې خبرې چې په سينو زړونو ستاسې کې دي. آيا نه دي راغلې تاسې ته اى منکرانو خبر د هغو کسانو چې منکران شوي دي پخوا له دې نه؟، پس وېې څکل وبال سزا د کار خپل، او شته دوى ته عذاب دردناک.

تفسير: يعنې له تاسې څخه پخوا ډېر قومونه لکه عاد او ثمود او نور هلاک شوي دي، او د آخرت عذاب جلا دى، دا خطاب د مکې مکرّمې هستېدونکيو لپاره دى.

ذٰلِكَ بِأَنَّهُ كَانَت تَّأْتِيهِمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالُوا أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوا

دا (عذاب دوى ته) د دې لپاره دى چې وو به دوى چې راتلل به دوى ته رسولان د دوى په ښکاره دلائلو سره، نو ويل به دوى (تعجّبًا وتسمخرًا) چې آيا بشر سړى (لکه مونږ) لاره ښيي مونږ ته، بيا به کافران شول (په رسولانو) او مخونه به يې وګرځول.

تفسير: يعنې څمونږ غوندې پر يوه سړي باندې يې د لارې ښوونې او د هادي نوم اينبى، او هغه يې مونږ ته رالېږلى دى؟ که مونږ ته هادي لېږونکى وو، نو ښايي پرښته يې رالېږلې وى، ګواکې د دوى په نزد د بشريت او رسالت په منځ کې منافات وو، نو ځکه هغوى خپلو ځانونو ته کفر غوره کړ، او د پيغمبرانو د خبرو له منلو څخه يې مخ واړاوه.

وَّاسْتَغْنَى اللَّهُ ۚ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ۝٦

او بې پروا غني دى الله (له ايمان د خلقو)، او الله غني بې پروا دى (له عبادت)، او ډېر ستايلى شوى دى (بې له ستايلو د خلقو).

تفسير: يعنې د الله تعالى څه پروا ده، که هغوى مخ واړوي، يا غاړه وغړي؛ نو الله هم له هغوى ځنې د خپل رحمت نظر اړوي.

زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا ۚ

دعوى کوي هغه کسان چې کافران شوي دي چې له سره به بيا ژوندي راپورته نه کړى شي دوى.

تفسير: هم هغسې چې دغه کُفّار پخپل زعم د انبياوو له رسالت څخه انکار کوي، د بعث بعد الموت ځنې هم انکار کوي.

قُلْ بَلَىٰ وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ ۚ وَذٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرٌ ۝٧

ووايه (اى محمده دوى ته چې) هو بيا به ژوندي راپورته کړى شئ، قسم دى په رب ځما چې خامخا ژوندي پورته به کړل شئ هرومرو تاسې (پس له مرګه)، بيا خامخا خبر به کړى شئ تاسې هرومرو په هغه څه چې کړي دي تاسې په دنيا کې، او دا (ژوندي پاڅول جزاء ورکول) په الله باندې ډېر اسان دي.

**تفسیر:** یعنې د دویم ځلي بیا ژوندي کول او د ګردو حساب، کتاب اخیستل الله تعالی ته کوم سخت او ګران او مشکل کار نه دی، پوره یقین ولرئ ! چې دا کار ضرور کېدونکی دی، د چا له انکار کولو څخه هغه تاکلی شوی کار هیڅ وړاندې وروسته نه کیږي، نو ځکه ښایي چې تاسې انکار پر پرېږدئ، او د هغې ورځې په فکر کې ولوېږئ.

فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِيْٓ اَنْزَلْنَا ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ۞

نو ایمان راوړئ په الله او په رسول د ده (محمّد) باندې، او په هغې رڼا (قرآن) باندې چې نازل کړې دی مونږ، او الله په هغه څه چې کوئ یې تاسې ښه خبردار دی.

**تفسیر:** یعنې ایمان سره عمل هم یو ضروري شی دی.

يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ ؕ

(یاد کړه) هغه ورځ چې راجمع به کړي (او خبر به در کړي الله) تاسو لره په ورځ د جمع کېدلو (قیامت) کې، دا (ورځ چې ده) ورځ د نفعې او نقصان ده.

**تفسیر:** یعنې دوزخیان به پړه کیږي، او جنّتیان به کامیابیږي، پړه کېدل دا چې هغوی به د الله تعالی ورکړي قوّتونه بېځایه لګولي وي، رأس المال او پنګه به یې هم له لاسه وتلي وي، برى دا چې د لویې فائدې په بدل کې په زرهاوو ښه مومي، اوس د همدې خبرې لږ څه تفصیل داسې راځي چې:

وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُّكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ

او هغه چې ایمان راوړي په الله او وکړي عمل نېک؛ لرې به کړي (الله) له ده څخه بدي د ده.

**تفسیر:** یعنې هغه تقصیرات چې شوي دي؛ د ایمان او ښو کارونو له وجې معاف او ښنلی کیږي.

وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ۞

او داخل به کړي (الله) دغه (صالح مؤمن) په هغو جنّتونو کې چې بهیږي له لاندې (د ونو او ماڼیو) د هغو (څلور قسمه) ویالې، تل به وي دوی په هغه کې ابدي همېشه، دغه (مغفرت او جنّت) برى خلاصی ډېر لوی دی.

**تفسیر:** یعنې هر څوک چې جنّت ته ورسیږي؛ ټول مرادونه یې په لاس ورځي، ځکه چې جنّت د الله تعالی د لیدلو او د هغه د رضاء موندلو ځای دی.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۞ مَآ اَصَابَ مِنْ مُّصِيْبَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ ؕ

او هغه کسان چې کافران شوي دي او نسبت د دروغو کوي آیتونو څمونږ ته، دغه کسان دي یاران ملګري د دوزخ، تل به وي دوی په هغه (دوزخ) کې، او بد ځای د ورتللو دی (دوزخ). نه رسیږي هیڅ مصیبت، غم، درد هیڅاته مګر خو (رسیږي) په اذن حکم د الله سره، او هغه څوک چې ایمان یې راوړی دی په الله باندې؛ لاره ښیي (الله) زړه د ده ته (د صبر او ثبات).

**تفسیر:** په دنیا کې هیڅ یوه سختي او مصیبت بې د الله تعالی له رضا، مشیت څخه نه رسیږي، کله چې مؤمنان په دې خبره باندې یقین او باور ولري؛ نو نه ښایي چې په هغه باندې خفه شي، بلکه په هر وخت او په هر حال باندې د هغه په فیصلې باندې رضا وي، او تل دې هسې وینا وکړي، تر څو چې الله تعالی یې زړه کلك کړي، او پدې وپوهیږي چې هر څه د الله تعالی له جانبه دي.

وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيۡءٍ عَلِيۡمٌ ﴿۱۱﴾

او الله په هر څیز باندې ښه عالم دانا دی (پر شاکرانو صابرانو).

**تفسیر:** یعنې هغه تکلیف او مصیبت چې د الله تعالی له لوري رارسیږي؛ د هغه عین علم او حکمت دی، همغه الله تعالی ته ښه معلوم دي چې کوم یو له مونږ څنې د واقعي صبر، تسلیم او رضا په سمه لاره ځي؟ او د چا زړه د کومو احوالو او کیفیاتو د مورد ګرځېدلو وړ دی؟.

وَاَطِيۡعُوا اللّٰهَ وَاَطِيۡعُوا الرَّسُوۡلَ ۚ فَاِنۡ تَوَلَّيۡتُمۡ فَاِنَّمَا عَلٰى رَسُوۡلِنَا الۡبَلٰغُ الۡمُبِيۡنُ ﴿۱۲﴾

او حکم ومنئ تاسې د الله، او حکم ومنئ تاسې د رسول (د دغه الله)، پس که مخ وګرځوه تاسې (له طاعته؛ نو د تاسې نقصان دی، رسول ته څه زیان نه رسیږي ،ځکه چې) نو بېشکه په رسول ځما باندې رسونه ښکاره ده (او خپل تبلیغ یې کړی دی).

**تفسیر:** یعنې په نرمی، سختی، تکلیف، راحت او په هر صورت کې د الله تعالی او د هغه د رسول حکم ومنئ !، که نه ستاسې خپل نقصان دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم خو تاسې ته ټول ښه او بد درپوهولي دي، او خپل فرض یې ادا کړی دی، او الله تعالی ته ستاسې له اطاعت یا معصیت څخه هیڅ یو ضرر یا ګټه نه وورسیږي.

اَللّٰهُ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلۡيَتَوَكَّلِ الۡمُؤۡمِنُوۡنَ ﴿۱۳﴾

الله (یو دی) نشته هیڅوك وړ د عبادت مګر خو همدی دی، او خاص یواځې پر الله باندې پس توکل دې وکړي مؤمنان.

**تفسیر:** یعنې معبود او مستعان یواځې د الله تعالی لوی ذات دی، بل څوك د بندګۍ او د هیلې او د اسرې وړ نه دی.

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اِنَّ مِنۡ اَزۡوَاجِكُمۡ وَاَوۡلَادِكُمۡ عَدُوًّا لَّكُمۡ

ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی ! بېشکه ځینې له ښځو ستاسې او (ځینې له) ځامنو ستاسې دښمنان دي تاسې لره.

**تفسیر:** ډېر ځلې داسې کیږي چې سړی د ښځې او ځامنو په مینه او محبت کې داسې اخته کیږي، چې د الله تعالی له یاده غافلیږي، او د داسې تعلّقاتو لامله نور ډېر خراب کارونه هم کوي، او له ډېرو ښو څخه بې برخې پاتې کیږي، د ښځې او اولاد غوښتنې او د هغوی خوښ ساتل هیڅکله دې نه پرېږدي چې بل شي تـه خپل فکـر واړوي، د آخرت فکر ترې هیریږي، کله چې د آل او عیال د سړي د داسې ضرر او نقصان سبب وګرځي، هغه یې دوستان نه بلل کیږي، بلکه داسې دښمنان دي چې سړی د دوی د دې دښمنۍ احساس نشي کولی، نو ځکه الله تعالی مو ویښوي چې ځانونه مو له داسې دښمنانو څخه ساتئ !، او له هسې چارو څنې لرې ګرځئ چې د هغو په وسیله دنیا تاسې ته ډېره ښه ښکاره شي،

او آخرت مو له ياده ووځي، او د دنيا لامله مو دين له لاسه وران شي، ولې داسې نه دي چې په دنيا کې ګردې ښځې يا ټوله اولاده او خپلوان هسې وي، چې سړی د آخرت له ياده غافلوي، بلکه ځينې بختورې ښځې او هلکان داسې هم وي چې له خپلو مېړو او پلرونو سره د هغوی د دين په حفاظت کې مرستې کوي، او په ښو چارو کې هغوی ته لار ښوونه او لاس نيونه کوي، او هغوی ته عابدې ښځې نعم الصاحبات او نېک مرغې اولاده باقيات الصالحات ګرځي: (جعلنا الله منهم بفضله ومنّه).

فَاحْذَرُوهُمْ وَإِنْ تَعْفُوا وَتَصْفَحُوا وَتَغْفِرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿۱۴﴾

نو ځان وساتئ تاسې له دوی څخه (په مقابل د حکم د الله او د دوی لحاظ مه کوئ)، او که عفوه او ګزشت وکړئ تاسو، او مخ وګرځوئ تاسو، او مغفرت وکړئ تاسې؛ پس بېشکه الله ښه مغفرت کوونکی (د خطيّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** يعنې که دوی له تاسې سره دښمني وکړه، او تاسې ته ديني يا دنيوي زيان ورسېد؛ نو د هغه اثر او اغېزه به داسې کېږي چې تاسې به په انتقام او کسات پسې لوېږئ، او پر هغوی باندې به نامناسبه سختې شروع کوئ، نو له داسې کولو څخه به د دنيا انتظام خرابيږي، تر هغه ځايه پورې چې عقلاً او شرعًا ګنجايش وي؛ له هسې حماقتونو، تقصيراتو ځنې تېرېږئ او ښښئ يې !، انتقام او کسات پسې مه ګرځئ !، چې په داسې مکارمو اخلاقو سره به الله تعالی پر تاسې باندې مهرباني کوي او ستاسې خطاوې ښښي.

إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ وَاللَّهُ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿۱۵﴾

بېشکه همدا خبره ده چې مالونه ستاسې او اولاد ستاسې يوه فتنه ازموينښت دی، او الله چې دی په نزد د ده دی اجر ثواب ډېر لوی.

**تفسير:** يعنې الله تعالی تاسې ته مال او اولاد درکوي او تاسې پرې ازمويي، چې کوم يو له تاسې څخه په داسې فاني او زائلو شيانو کې اخته کېږي؟ او کوم يو له تاسې ځنې د فاني شيانو نه د خپل آخرت پنګه او ذخيره ګرځوي؟ او د آخرت ډېر لوی اجر او ثواب د دې ځای پر حظوظو او مالونو باندې ښه بولي، او ترجيح ورکوي؟ او يا أخروي باقي او غير فاني نعمتونه هېروي، او په بدل يې دغه زائل او فاني شيان اخلي؟.

فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَأَنْفِقُوا خَيْرًا لِأَنْفُسِكُمْ

نو وويرېږئ تاسې له الله څومره چې توانېږئ تاسې، او واورئ (خبرې د الله په سماع د قبول سره)، او اطاعت کوئ (د احکام الله)، او نفقه کوئ لګوئ ښه شيان لپاره (د نفعې) د ځانونو خپلو، يا دا غوره ده ستاسو لپاره.

**تفسير:** يعنې تر څو مو چې له وسه کېږي له الله تعالی ځنې وويرېږئ، او په دې امتحان او ازموينه کې ثابت قدم اوسئ !، او د هغه احکام واورئ !، او عمل پرې وکړئ !.

وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿۱۶﴾

او هغه چې وساتلی شي له حرص بخيلۍ د نفس خپل څخه؛ نو دا کسان همدوی دي برياليان په مراد رسېدلي (بچ شوي له عذابه په دواړه دارينو کې).

**تفسير:** يعنې د الله تعالی په لاره کې به له نفقه کولو او له مال لګولو څخه ستاسې خپلې ښېګڼې کيږي، او همغه سړی بريالی او په مراد رسيږي چې الله تعالی د هغه زړه له دې اندېښنې غوښتنې څنې پاک ساتلی وي، او حرص، بخل، طمع او کنسکي لار په کې ونه لري.

إِن تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا يُضَٰعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ۚ

که چېرې قرض پور ورکړئ تاسې الله لره (په هغه څه چې فرمايلي يې دي) قرض پور نېک؛ نو دو چنده به کړي (الله ثواب د) هغه (پور) تاسې ته او مغفرت به وکړي (الله) تاسې ته.

**تفسير:** يعنې د الله تعالی په لاره کې په اخلاص او نېک نيّت سره له خپل حلال او طيب مال څنې صرف کړئ او ويې لګوئ !، تر څو الله تعالی تاسې ته څو چنده له هغه څنې زيات ثواب درکړي، او ستاسې ګردې خطاوې او تجاوزات وبښي، همداسې يو مضمون پخوا له دې څخه هم تېر شوی دی، پوره تقرير دې هلته وکوت شي !.

وَاللَّهُ شَكُورٌ حَلِيمٌ ﴿١٧﴾

او الله ښه قدردان دی ښه تحمّل والا دی.

**تفسير:** د قدر پېژندلو خبره دا ده چې په لږ عمل سره ډېر ثواب ورکوي، او تحمّل يې دا دی چې د ګناه په ليدلو سره سمدلاسه عذاب نه مقرروي، بيا هم د ډېرو ګناهګارانو جرم بښي، او د ډېرو سزا تخفيف کوي.

عَٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَٰدَةِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾

عالم پوهېدونکی د پټ او ښکاره دی، ښه غالب قوي دی ډېر حکمت والا دی.

**تفسير:** يعنې الله تعالی په ښکاره کارونو او پټو نيتونو باندې عليم او خبير ښه دانا او بينا دی، او سم د خپل زبردست قوّت او حکمت سره هر چاته بدل ورکوي.

تمّت سورة التغابن بفضل الله تعالی ومنّه، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الطَّلَاقِ

«د (الطلاق) سورت مدني دی، (١٢) آيت (٢) رکوع لري، په تلاوت کې (٦٥) او په نزول کې (٩٩) سورت دی، وروسته د (الإنسان) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ

ای نبي ! (ووايه امّت خپل ته) کله چې اراده وکړئ طلاقوئ تاسو ښځې؛ نو طلاقوئ يې په (وخت د) عدّت د دوي کې (په طُهر کې چې خالي له جماع وي).

تفسير: اګر که دلته مخاطب نبي صلی الله عليه وسلم دی، مګر په واقع کې ګرد امّت مخاطب دی، يعنې کله چې کوم سړی بيا په کوم ضرورت يا د مجبوريت له کبله د خپلې ښځې د طلاق ورکولو اراده وکړي، نو ښايي چې هغه دې په عدّت سره طلاق ورکړي.

په طلاق ورکولو کې مشروعه طريقه دا ده چې په طُهر کې دې طلاق ورکړی شي، او له احاديثو څخه هم دا قيد ثابتيږي، چې په هغه طهر کې چې کوروالی او صحبت په کې نه وي شوی؛ ښايي مېړه خپلې ښځې ته طلاق ورکړي.

وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ ۖ

او وشمېرئ وساتئ تاسو عدّت (د ښځو خپلو).

تفسير: نارينه او ښځې دواړو ته ښايي چې دا خبره په ياد ولري چې چېرې د غفلت او سهوې په وسيله له دوی څخه کومه سهوه او بې احتياطي ونشي، او څه لاندې باندې په منځ کې رانشي، او هم ښايي چې طلاق داسې ورکړ شي چې د عدّت په شمېر کې هيڅ شانې ډېروالی او لږوالی رانشي.

وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ ۖ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ

او وويرېږئ تاسو له الله چې رب (پالونکی) د تاسې (دی)، مه وباسئ (ای خاوندانو) دغه (ښځې خپلې) له کورونو خپلو څخه (چې په کې اوسي دوی، تر هغه پورې چې يې تېر شي عدّت).

تفسير: يعنې له الله څخه وويرېږئ، او په شرعي احکامو باندې پابندي ولرئ !، چې له هغو څخه يو حکم دا دی چې د حيض په حالت کې دې طلاق ور نه کړ شي !، او درې طلاق دې يو ځای ور نه کړ شي !، او مطلّقه ښځه دې له کوره د باندې ونه ايستله شي !، او د دې په شان د الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُهُ نورې ښوونې هم په اخلاص سره منئ !.

وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ ۚ

او نه دې وځي دغه (ښځې هم پخپله له کورو نه تر څو چې عدّت د دوی تېر شي) مګر هلته چې راشي دوی په فاحشه بې حيايي ښکاره سره (لکه زنا).

**تفسير:** يعنې ښځې دې پخپله خوښه هم نه وځي، ځکه چې دا سُکنَی محض حق العبد نه دی چې د هغه په رضا سره ساقطه شي، بلکه حق الشّرع دی، هو ! که ښځه کومه ښکاره بېحيايي وکړي، يا په بدو چارو ځغرد وکړي، يا د غلا مرتکبه شي، يا د ځينو علماوو په قول: ژبه وکړي، يا تل په جنګ جنجال او جګړه کې لګيا وي، او بې له غمه او خفګانه يې بل کار نه وي؛ نو ايستل يې روا دي، که دا ښځه بې موجبه له کوره ووځي؛ نو دا پخپله د دې د صريحې بې حيايي يو کار دی.

وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۗ وَمَنْ يَّتَعَدَّ حُدُوْدَ اللّٰهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ

او دا (احکام) حدود اندازه کړی شوي د الله دي، او هر هغه چې تيرېږي له حدودو د الله څخه؛ نو په تحقيق ظلم يې کړی دی په ځان خپل باندې.

**تفسير:** يعنې ګناهګار شوي دي، د الله تعالی په نزد د سزا موجب وګرځېد.

لَا تَدْرِيْ لَعَلَّ اللّٰهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ①

نه پوهېږې (ته ای طلاق کوونکيه ! يا نه پوهېږي هيڅ نفس) ښايي چې الله پيدا کړي وروسته له دې طلاق کوم ښه کار او نوی صورت لکه رجوع له طلاقه.

**تفسير:** يعنې ښايي چې بيا د دواړو په منځ کې روغه او صلحه وشي، او په طلاق باندې پښېمان او نادم شي.

فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ

بيا نو کله چې ورسيږي دغه (ښځې) نېټې خپلې ته؛ نو وساتئ (تاسې ای مېړونو) دوی په معروف نېکۍ ښه شان سره، يا جلا شئ تاسې له دوی څخه په معروف نېکۍ ښه شان سره.

**تفسير:** يعنې په رجعي طلاق کې کله چې عدّت ختمېدلو ته نژدې شي؛ نو تاسې لره له دوو چارو څخه د يوې چارې اختيار دی، چې يا د عدّت له ختمېدلو څخه پخوا سم له دستوره هغې ښځې ته رجعت او خپلې نکاح ته دوام ورکړئ !، يا د عدّت په ختمېدلو سره په معقولې طريقې باندې له هغې څخه جلا شئ !، مطلب دا که د نکاح ټينګ ساتل مقصد وي؛ نو په هغه وخت کې، او که يې شلول مطلب وي؛ نو په دغه وخت کې ځغرد (ټينګوالی) پرې وکړئ !، او په دواړو صورتونو کې د انسانيت، شرافت اصولو ته په درنه سترګه وګورئ !، او داسې مه کوئ چې ساتنه يې مقصود نه وي، او خامخا د عدّت د اوږدوالي لپاره رجعت وکړئ، يا د ساتلو په صورت کې هغې ته ايذاء ورسوئ، او طعن او تشنيع ور واوروئ !.

وَّاَشْهِدُوْا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنْكُمْ

او شاهدان نيسئ تاسې (په دغه رجوع باندې) دوه خاوندان د عدل له تاسې څخه.

**تفسير:** يعنې وروسته له طلاق ورکولو او پخوا د عدّت له پوره کېدلو که د نکاح بيا ساتل غواړئ؛ نو په دې رجعت باندې دوه شاهدان ونيسئ، تر څو د خلقو په نزد متهم نه شئ.

وَاَقِيْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ؕ

او ښه اداء کړئ تاسې شاهدي (ای شاهدانو په وخت د حاجت کې) لپاره د (ثواب او رضا د) الله.

تفسیر: په دې کې شاهدانو لره هدایت دی چې د شاهدي ورکولو په وخت کې کره او خرابه خبره ونه کړي، او سمه صافه او درسته خبره ووایئ !.

ذٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۬

دا (ساتنه په نېکۍ سره) نصیحت کاوه شي په دې سره هغه چاته چې وي چې ایمان یې راوړی وي په الله او په ورځې وروستی (د قیامت) باندې.

تفسیر: د جاهلیت په زمانه کې پر ښځو باندې زیات ظلمونه کېدل، او له ښځو سره هسې سلوك جاري وو لکه چې له غواوو او خرو سره یې کوي، یا له خورا سختو او ذلیلو بندیانو سره کاوه شي، ځینې ښځې به سل سل کرته طلاقېدې، خو سره د هغه به هم د هغوی د مصیبت دوره پای (آخر) ته نه رسېده، قرآن په څو څو ځایونو کې د دې وحشیانه مظالمو او بې رحمیو خلاف ویناوې کړې دي، او د نکاح او د طلاق په حدودو او حقوقو باندې په ډېر ښه ډول سره زور غورځولی دی، بالخصوص د دې سورت په منځ کې په نورو حکیمانه وو هدایتو او نصیحتو کې یې یو نهایت جامع او مانع او ټول ښوونکی اصول بیان فرمایلی دی چې: ﴿فَاَمْسِكُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ فَارِقُوْهُنَّ بِمَعْرُوْفٍ﴾ دی، چې د هغه حاصل دا دی چې که یې ساتئ؛ نو په معقوله ډول او طریقې سره یې وساتئ !، او که یې پرېږدئ؛ نو هم په معقوله طریقه سره یې پرېږدئ !، خو له دې ښو او زرینو نصیحتو څخه هغه سړی منتفع او ګټور کېدی شي چې په الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم او په آخرت باندې یقین لري، ځکه چې همدا باور او یقین د انسان په زړه کې د الله تعالی وېره او خوف پیدا کوي، او د همدې وېرې لامله دا خیال د انسان په فکر کې پیدا کیږي: همغسې چې یوه کمزوره ښځه له بخته او اتفاقه ځمونږ په منګلو او قبضه او اقتدار کې راغلې ده، مونږ هم ټول د یوه لوی قهّار الله تعالی په قبضه او اقتدار کې پراته یو، همدا یو خیال دی چې په هر حال کې سړی له ظلم او تعدّي څخه ساتي، او د الله تعالی په امر منلو باندې اړوي، د دې لپاره په دې سورت کې په مخصوص ډول سره په اتقاء پرهېزګاری او د الله تعالی په وېره باندې زیات امرونه او توصیې شوي دي.

وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مَخْرَجًا ۙ﴿۲﴾

او هغه څوك چې وېرېږي له الله، ځان ساتي له معاصیو؛ وبه ګرځوي ده ته یو ځای د وتلو (له دنیوي او اخروي غمونو نه).

تفسیر: یعنې له الله تعالی څخه ووېرېږئ !، او د هغه د احکامو تعمیل په هر حال کې وکړئ !، که څه هم له ډېرو مشکلاتو او شدائدو سره مخامخ شئ، ځکه چې الله تعالی د هغو ګردو مشکلاتو ځنې د وتلو لاره در خلاصوي، او په سختیو کې د ګزارې وسیلې هم در برابروي.

وَّيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ؕ

او رزق روزي به ورکړي (الله) ده ته له هغه (ځایه) چې ګمان به نه کوي دی.

تفسیر: د الله تعالی څخه وېره د دواړو دارینو د خزانو کنجي ده، او د ګردو بریو او کامیابیو وسیله ده، له همدې ځنې ګرد مشکلات اسانیږي، بې قیاس او بې ګمانه یې رزق روزي او خواړه ور رسیږي، ګناهونه یې ببښل کیږي، جنّت ورحاصلیږي، ثواب یې زیاتیږي، او یوه عجیبه د زړه ډاډینه، سکون، اطمینان او خوښي په برخه او نصیب راځي، چې د هغه لامله بیا هیڅ یوه سختي لکه سختي نه ورښکاري.

وَمَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بَالِغُ اَمْرِهٖ ۭ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ③

او هغه څوک چې توکل وکړي په الله باندې؛ نو دغه (الله) بس کافي دی ده لره (په دواړو جهانو کې)، بېشکه الله رسېدونکی دی امر کار خپل ته، په تحقيق ګرځولې ده الله هر څيز لره اندازه.

**تفسير:** يعنې پر الله تعالی باندې هيله او اسره ولرئ، او يواځې پر وسائلو او اسبابو باندې تکيه ونه کړئ !، د الله تعالی قُدرت په دې اسبابو اړه نه لري، د کوم کار د کولو اراده چې الله وفرمايي؛ هغه هرومرو (خامخا) پوره کېدونکی دی، اسباب او وسائل هم د ده د مشيت تابع دي، هو ! د هر څيز اندازه د هغه له خوا ټاکلې شوې ده، چې سم له هغې سره هغه ښکاره کېدونکی دی، نو څکه که د کوم څيز په حاصلېدو کې څه ډيل ښکاره شي؛ نو متوکّل لره نه ښايي چې ځان خپه يا پرېشان کړي.

وَالّٰٓـئِْ يَىِٕسْنَ مِنَ الْمَحِيْضِ مِنْ نِّسَاۗىِٕكُمْ اِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلٰثَةُ اَشْهُرٍ ۙ وَّالّٰٓـئِْ لَمْ يَحِضْنَ ۭ

او هغه ښځې چې نااميده شوي وي (په سبب د کبارت يا د مرض) له حيضه له ښځو ستاسې ځنې که چېرې په شک کې يئ تاسې؛ نو عدّت د دوی درې مياشتې دی، او همداسې ښځې چې نه وي شوي حائضې (په سبب د صغارت نو درې مياشتې عدّت دې تېروي).

**تفسير:** يعنې پاک قرآن د مطلّقې عدّت لکه چې د «البقرة» په سورت کې راغلی دی؛ درې حيضه ښوولی دی، که شبهه او شک پيدا شي چې چاته حيض ورنشي، يا د ډېر عمر او منګ لامله يې حيض بند شوی وي، نو د هغې عدّت به څو وي؟ دا يې راښکاره کړه چې درې مياشتې دی.

وَاُولَاتُ الْاَحْمَالِ اَجَلُهُنَّ اَنْ يَّضَعْنَ حَمْلَهُنَّ ۭ

او (ښځې) خاوندانې د بار ګېډې (حاملانې بلاربې) عدّت د دوی دا دی چې وزېږوي دوی بار (حمل) خپل.

**تفسير:** د جمهورو په نزد د حاملې عدّت د هغې د حمل تر وضعې او د مولود تر څېګولو پورې دی، که څه هم هغه يوه لحظه او شېبه وروسته وي، يا تر ډېرو مياشتو پورې وځنډېږي، په دې کې د مطلقې او د کونډې حکم يو دی، لکه چې په احاديثو کې راغلي دي.

وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَّهٗ مِنْ اَمْرِهٖ يُسْرًا ④ ذٰلِكَ اَمْرُ اللّٰهِ اَنْزَلَهٗٓ اِلَيْكُمْ ۭ وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّاٰتِهٖ وَيُعْظِمْ لَهٗٓ اَجْرًا ⑤

او هغه څوک چې وېرېږي له الله، ځان ساتي له معاصيو؛ نو وبه ګرځوي الله ده ته کار د ده کې اساني. دا (چې ويلې شوې دی) امر حکم د الله دی چې نازل کړی يې دی تاسې ته، او هغه څوک چې وېرېږي له الله، ځان ساتي له معاصيو؛ نو لرې به کړي الله له ده څخه ګناهونه د ده، او لوی به کړي (الله) ده لره اجر ثواب (د ده).

**تفسير:** د هرې جُملې په آخر کې د اتّقاء او د الله تعالی أكرمَ شأنُه وأعظمَ برهانُه د وېرې مضمون په مختلفو اساليبو او ډول ډول پيرايو سره يې تکرار کړی دی، تر څو لوستونکي د هغه د بار بار ويلو څخه ډېر وينښ او متنبّه شي، چې د ښځو په معاملاتو کې د دې اتقاء او پرهېزګارۍ ضرورت ډېر زيات دی.

أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ

واوسوئ دا (ښځې طلاقې کړی شوې) په هغه ځای کې چې په کې اوسېږئ تاسې (سم) له طاقت د تاسې (چې توانېږئ !).

تفسير: د نارينه په ذمّه باندې ضرور دي چې خپلې مطلّقې ښځې ته تر عدّت پورې هستوګنې لپاره کور ورکړي، چې هغه ته «سُکنی» وايه شي، نو کله چې «سکنی» واجبه شي؛ نو نفقه هم د هغه په ذمّه ثابتيږي، ځکه چې ښځه دومره موده د ده په کور کې مقيّده او محبوسه پاتې کيږي، د قرآنکريم د دې الفاظو اشاره په همدې لوري ده: ﴿مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ﴾.

وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ

او مه کوئ اراده د ضرر تاسې د دغو (مطلّقاتو) لره چې تنګوئ به (ځايونه او نفقې) په دوی باندې.

تفسير: يعنې ای مېړونو (خاوندانو) ! ضرر مه رسوئ تاسو دې ښځو طلاقو شوو ته په ځای د هستوګنې چې هغوی په تنګې شي، او په وتلو سره مجبورې شي.

وَإِن كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّىٰ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ

او که چېرته وي دغه (ښځې) خاوندانې د بار ګېډې (حاملانې بلاربې) نو نفقه کوئ تاسې پر دوی باندې تر هغه پورې چې وزېږوي دوی بار (حمل د ګېډې) خپلو (په ځېګېدلو سره).

تفسير: د حمل مدّت کله چې ډېر اوږديږي؛ نو هغه يې په خصوصيت سره راوښود، چې په هغه کې که هومره اوږدوالی هم وشي، خو د حمل تر ځېږېدلو پورې ښايي هغې ته دې نفقه ورکړه شي، او داسې دې ونه کړي چې درې مياشتې نفقه ورکړي، او بيا يې بنده کړي.

فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ

نو که تی ورکاوه دوی (پس له طلاقه) اولاد د تاسو لره؛ پس ورکړئ تاسې هغوی لره مزدوري د هغوی، او مصلحت مشوره کوئ (ای ښځو او مېړونو په حق د مولود خپل) په منځونو خپلو کې په معروف نېکی سره.

تفسير: يعنې که له وضع حمل څخه وروسته ښځې ستاسې له خاطره وړوکي ته شودې ورکوي؛ نو اجرت يې ښايي هومره ورکړ شي لکه نورو تی ورکوونکيو ښځو ته چې ورکاوه کيږي !، او سم له دستوره په معقولې طريقې سره يو له بله د دې وړوکي په نسبت مشوره وکړي، او لازمه قراردادونه وتړي، او خامخا ضد او خراب تګ ونه کړي !، او يو له بل سره د نېکی سلوک وکړي، نه دې ښځه د شودو له ورکولو څخه غاړه غړوي !، او نه دې نارينه له هغې ځنې مخ اړوي چې بلې ښځې ته د دې وړوکي ورکړي، چې د ده د مور په ځای بله ښځه په اجرت سره تی ورکړي.

وَإِن تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ﴿٦﴾

او که سختي وکړئ تاسې (ای والدينو په تي ورکولو او اجرت کې)؛ نو لپاره د تي ورکولو دې طلب کړي هغه (مولود) لره بل ښځه (يعنې دايي دې ورته ونيسي، او په مور باندې دې زور نه کوي).

**تفسير:** يعنې که د مخالفت، ضد لامله ښځه په شودو ورکولو باندې راضي نشي؛ نو نارينه دې هرومرو هغې ته نه ګوري، او بله ښځه دې پيدا کړي چې هغه کوچني ته شودې ورکړي، او که نارينه پر هغې ښځې باندې خپل وړوکی نه پالي، او شودو ته يې نه پرېږدي؛ نو خامخا به بله کومه ښځه پيدا کيږي، او په دواړو صورتونو کې به بلې ښځې ته څه ورکول کيږي، نو ولې همدا شی د همغه وړوکي مور ته ورنه کړ شي، چې هم وړوکی په ارام او خوشاله او هم مور پرې ډاډه او بې پروا شي.

لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِۦ ۖ وَمَن قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهُۥ فَلْيُنفِقْ مِمَّآ ءَاتَىٰهُ ٱللَّهُ ۚ لَا يُكَلِّفُ ٱللَّهُ نَفْسًا إِلَّا مَآ ءَاتَىٰهَا ۚ سَيَجْعَلُ ٱللَّهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ۝٧

نو نفقه دې ورکوي خاوند د طاقت له طاقته شتو خپلو نه، او هغه چې تنګ کړ شي په ده باندې رزق د هغه، پس نفقه دې کوي له هغه څنې چې ورکړي وي هغه لره الله، نه ورکوي تکليف الله هيڅ نفس لره مګر خو په هغه قدر چې ورکړی وي هغه لره (له ماله)، ژر به ښکاره کړي الله پس له سختی تنګی څخه اسانی او پراخي.

**تفسير:** يعنې د ووړکي خرڅ پر پلار باندې دی، مال او شته والا دې د خپل مال او شتو په اندازه خرڅ او نفقه ورکوي، اکرب او نادار دې د خپل نشتوالي په حيثيت نفقه خرڅ کوي، که د کوم سړي په برخه ډېره پراخي او شته نه وي، او دالله جل جلاله له درباره يې لږ رزق او خواړه په برخه شوي وي؛ نو دی دې په هغه کې د خپل ګنجايش او قوّت په نسبت خرڅ وکړي !، ځکه چې الله تعالی هيچا ته د هغه له طاقت څخه زيات تکليف نه ورکوي، کله چې کوم سړی په تنګه کې هم د هغه له احکامو سره خرڅ وکړي؛ نو الله تعالی به هغه سختي او تنګه په اسانی او پراختيا سره وربدله کړي.

وَكَأَيِّن مِّن قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِۦ فَحَاسَبْنَٰهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَٰهَا عَذَابًا نُّكْرًا ۝٨

او ډېر وو له کليو څخه چې ګرځېدلي سرکښي يې کړې وه له امره د رب خپل، او له (امره حکمه) د رسولانو د دغه (الله) څخه، نو حساب به وکړو مونږ له هغوی سره حساب سخت (په قيامت کې)، او په عذاب به کړو مونږ هغوی په عذاب نااشنا ناکاره سخت سره.

شيخ الهند (رحمة الله عليه) د دې آيت ترجمه داسې کړې ده چې: «او څومره (ډېر) وو له کليو نه چې سرکشي يې کړې وه له حکمونو د رب خپل نه، او له رسولانو د ده نه؛ پس حساب مو وکړ له هغوی سره حساب سخت، او په عذاب مو کړ هغو په ناکاره ناڅاپه عذاب سره.

**تفسير:** يعنې د شريعت د احکامو مخصوصًا د ښځو په نسبت د ګردو حکمونو پوره پابندي ولرئ !، که نافرماني وکړئ؛ نو په ياد يې ولرئ ! چې څومره کلي او ښارونه د الله تعالی او د ده د رسولانو د نافرمانی لامله ويجاړ او وران شوي دي، کله چې هغه خلق د تکبّر او ځانمنی آخرې درجې ته ورسېدل، او مونږ د هغوی حساب او کتاب ښه او کلک واخيست، او د هغوی يو عمل مو هم بې له پوښتنې پرې نښود، او ټول مو په هسې سخت عذاب او آفت کې اخته کړل چې د هغه نظير او ثاني پخوا له هغه څخه هيڅ ليدلی شوی نه وو.

فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا وَكَانَ عَٰقِبَةُ أَمْرِهَا خُسْرًا ۝٩

نو (وڅکله يا) وبه څکې هغوی سزا د کار خپل (په دنيا کې)، او دی عاقبت آخر د کار د دوی زيان (په آخرت کې چې حرمان دی له جنّتونو).

تفسير: يعنې هغه سودا، بيع او شراء، پلورل او پېرودل (اخيستل او خرڅول) چې يې په ټول عمر کې کړي وو، آخر يې په هغو کې سخت نقصان وموند، تر دې چې پانګه يې هم له لاسه ووتله.

أَعَدَّ اللَّهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا

تيار کړی دی الله هغوی ته عذاب سخت (په دارينو کې).

تفسير: د مخه د دنيوي عذاب ذکر وو، دا د أخروي عذاب ذکر دی.

فَاتَّقُوا اللَّهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ الَّذِينَ آمَنُوا

نو ووېرېږئ له الله، ځان وساتئ ای خاوندانو د عقلونو هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی.

تفسير: يعنې د دې عبرتناکو واقعاتو له اورېدلو څخه عقلمند ايماندارانو ته وېرېدل په کار دي، او مونږ لره داسې کار کول نه ښايي چې د هغه لامله د الله تعالی د قهر او د خپګان مورد وګرځو، العياذ بالله.

قَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿١٠﴾

په تحقيق نازل کړی دی الله تاسې ته ذکر نصيحت (قرآن).

تفسير: يعنې قرآن، که له (ذکر) څخه (ذاکر) مراد وي، نو هغه پخپله رسول دی.

رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللَّهِ مُبَيِّنَاتٍ

رسول (چې محمد) دی لولي په تاسې باندې آيتونه د الله چې ښکاره کوونکي دي (د احکامو).

تفسير: يعنې ښکاره نښې او آيات چې په هغو کې د الله تعالی احکام په ډېر ښه ډول سره اورولی شوي دي.

لِيُخْرِجَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ

لپاره د دې چې وباسي (الله) هغه کسان چې ايمان يې راوړی او کړي يې دي ښه عملونه له ظلمتونو تيارو (د جهل او کفر) څخه رڼا (د علم او ايمان) ته.

تفسير: يعنې د کفر او د جهل له ظلمت او تيارو څخه ايستلي د ايمان او د عمل رڼا ته مو لار ښوولې ده.

وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللَّهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُدْخِلْهُ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا قَدْ أَحْسَنَ اللَّهُ لَهُ رِزْقًا ﴿١١﴾

او هغه چې ايمان راوړي په الله باندې، او وکړي ښه (عمل)؛ نو داخل به کړي (الله) ده لره په جنتونو کې چې بهيږي له لاندې (د ماڼيو او ونو) د هغو وياله، تل به اوسېدونکي وي دوی په هغو کې ابدي همېشه، په تحقيق ښه ورکړی دی الله هغه ته رزق روزي.

تفسير: او له جنّت څخه زيات ښه رزق، خواږه او روزي چېرې موندل کيږي !؟.

اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ

الله هغه (ذات) دی چې پیدا کړي يې دي اوه اسمانونه او (پیدا کړي يې دي) له ځمکې څخه په مثل د دې (اوه اسمانونو اوه ځمکې).

**تفسیر:** یعنې اوه ځمکې هم پیدا کړي دي، لکه چې د (ترمذي) او نورو په احادیثو کې راغلي دي.

یَتَنَزَّلُ الْاَمْرُ بَیْنَهُنَّ

نازلیږي امر حکم (د الله) په منځ د دغو (اسمانونو او ځمکو) کې.

**تفسیر:** یعنې د عالم د انتظام او تدبیر لپاره د الله تعالی تکویني او تشریعي احکام په اسمانونو او ځمکه کې راښکته کیږي.

لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ قَدْ اَحَاطَ بِکُلِّ شَیْءٍ عِلْمًا ﴿۱۲﴾

(پوهوي مو) تر څو چې وپوهیږئ تاسې چې بېشکه الله پر هر څیز باندې ښه قادر دی، او (پوه شئ) بېشکه چې الله په تحقیق احاطه فرمایلې ده رسېدلی دی هر شي ته له جهته د علمه قدرته.

**تفسیر:** یعنې د اسمان او د ځمکې د پیدا کولو او د هغو د انتظامي احکامو له جاري کولو څخه دا مقصود دی چې د الله تعالی د علم او د قدرت د صفاتو اظهار وشي، دا خبره د «ابن القیّم» (رحمة الله علیه) له لوري په (بدائع الفوائد) کې څرګنده شوې ده.

تمّت سورة الطلاق، ولله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ التَّحۡرِيمِ

«د (التحريم) سورت مدني دی، (۱۲) آيتونه او (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۶۶) او په نزول کې (۱۰۷) سورت دی، وروسته د (الحجرات) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

د نبي صلی الله علیه وسلم هسې عادوت وو چې وروسته له مازديگره د خپلو ټولو مطهّراتو ازواجو کره د څو لحظو او شيبو له مخې ورته، يوه ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلي ښځې أم المؤمنين بي بي «زينب» رضي الله تعالى عنها په کور کې لږ شاني ډيل وفرمايه، وروسته دا ښکاره شوه چې دوی هلته د هغه عسل شات ګبينه څخه څه خوړلي وو، چې د دوی په مخ کې ور وړاندې کړی شوي وه، دا د شاتو او د ګبينو د خوړلو ډيل او وقفه په هره ورځ پرله پسې پېښېده، تر څو چې أم المؤمنين بي بي «عائشة الصديقة» رضي الله تعالى عنها او أمّ المؤمنين بي بي «حفصة» رضي الله تعالى عنها سره ملګرې شوې، او داسې تدبير يې جوړ کړو چې د هغې لامله نه يواځې رسول أكرم صلی الله علیه وسلم د شاتو د شربت څښل د هغې کره پرېښود، بلکه بي بي «حفصة» رضي الله تعالى عنها ته يې وفرمايل چې: «ما د زينب کره د شاتو شربت څښلی وو، اوس قسم خورم چې وروسته له دې نه يې نه څښم»، لکه چې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په خيال دا خبره هم تېره شوې وه: که له دې خبرې څخه أم المؤمنين بي بي «زينب» رضي الله تعالى عنها خبره شي؛ نو هرومرو خپه کيږي، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم «حفصې» رضي الله تعالى عنها ته يې دا هم فرمايلي وو چې: «له دې خبرې هيچا ته څه ونه وايې»، همداسې يوه خبره د أم المؤمنين بي بي «مارية القبطية» رضي الله تعالى عنها په نسبت هم پېښه شوې وه، «مارية القبطية» هم د رسول أكرم صلی الله علیه وسلم ماندينه (بي بي) وه، چې د دې له ګېډې څخه د دوی څوی ابراهيم رضي الله عنه څېرېدلی وو، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د نورو ازواجو د خوښې لپاره قسم خوړلی وو چې: «پس له دې نه به د هغې کره نه ځم»، او دا خبره نشي، خو بي بي «حفصة» رضي الله تعالى عنها له دې خبرې څخه په پټه بي بي عائشې رضي الله تعالى عنها ته خبر ورکړ، او دا يې هم ورته وويل چې: پټه يې وساتي، دلته د الله تعالى له لوري دا خبرې څمونږ پيغمبر ته ورښکاره شوې، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم بي بي «حفصة» رضي الله تعالى عنها ته وفرمايل چې: «ولې دې له دې خبرې څخې نورې خبرې کړې دي؟ چې په ټينګه سره مې درته ويلي وو چې پټه يې وساته»، نو هغوی په تعجّب سره وويل: «تاسې ته دا خبر چا در کړی دی؟ نو پيغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې: «الله تعالى ماته له دې خبرې څخې خبر راکړی دی»، د همدې پېښې په لړ کې دا آيتونه راښکته شوي دي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ أَحَلَّ ٱللَّهُ لَكَۖ تَبۡتَغِي مَرۡضَاتَ أَزۡوَٰجِكَۚ

ای نبي (ای څما پيغمبره !) ولې حراموي ته هغه چې حلال کړي دي الله تاته، غواړې ته (په دې حرامولو سره) خوښي د ښځو خپلو.

تفسير: د حلال شي په ځان باندې د حرامولو مقصد داسې دی چې د هغه په نسبت چې د عقيدې له مخې حلال او مباح ګڼي، هسې عهد او پيمان وکړي چې وروسته له دې نه به يې نه استعمالوم، که داسې کول د کوم صحيح مصلحت پر بناء وي؛ نو شرعًا جائز دی، مګر د پيغمبر صلی الله علیه وسلم د رفيع شأن سره دا وړ او مناسب نه وو چې د څينو ازواجو

د خوښې لپاره داسې يوه (اسوه) قائمه کړي چې وروسته له دې نه به د هغه د امّت لپاره د تکليف سبب وګرځي، نو ځکه الله تعالی خپل رسول يې متنبّه وفرمايه چې ازواجو سره بېشکه خوش اخلاقي کول او په مينې او محبت سره سلوک لرل ښه کار دی، مګر نه په دې اندازه او مېچ چې يو حلال شی پر ځان باندې حرام کړي، او خامخا ځان په ربړ او تکليف کې واچوي.

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ①

او الله ښښونکی دی ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسير:** چې ګناه ښښي، او له تاسې څخه کومه ګناه هم نه ده شوې، يوازې پخپلې درجې کې يو خلاف اوْلی خبره دې له خولې څخه وتلې وه.

قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ اَيْمَانِكُمْ ۚ وَاللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ②

په تحقيق مقرر کړی دی الله تاسې لره حلالوالی د قسمونو ستاسې (په کفّارت سره) او الله مولی دوست مددګار ستاسې دی، او همدغه (الله) ښه عالم دانا دی، ښه حکمت والا دی.

**تفسير:** يعني هغه مالك الملك أعلى شأنُه وأعظم برهانُه د خپل علم او حکمت له مخې تاسې ته مناسب احکام او هدايات درلېږلي دي، چې له هغو څخه دا دي: که کوم سړی په يوه نامناسب شي باندې قسم وخوري؛ نو کفّاره دې ورکړي، او خپل قسم دې حلال کړي، چې د هغه ذکر د «المائدة» په سورت کې راغلی دی.

وَاِذْ اَسَرَّ النَّبِيُّ اِلٰى بَعْضِ اَزْوَاجِهٖ حَدِيْثًا ۚ فَلَمَّا نَبَّاَتْ بِهٖ وَاَظْهَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهٗ وَاَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ ۚ فَلَمَّا نَبَّاَهَا بِهٖ قَالَتْ مَنْ اَنْۢبَاَكَ هٰذَا ۗ قَالَ نَبَّاَنِيَ الْعَلِيْمُ الْخَبِيْرُ ③

کله چې پټ راز ووايه پيغمبر ځينو ښځو خپلو ته يوه خبره (چې تحريم د عسلو د ماريې يا د زينبې وو)، نو کله چې خبر ورکړ هغې (حفصې) په دې (خبرې) سره (عائشې ته) او ښکاره کړه هغه خبره الله پر دغه (خپل نبي پيغمبر) باندې؛ نو ور وپېژندله (نبي حفصې ته) له ځينو هغو (خبرو) سره، او مخ يې واړوو له ځينو خبرو، وويل دې (حفصې) چې چا خبر کړې ته په دې باندې، وويل (نبي) خبر کړی يم زه ښه عالم دانا ښه خبردار (الله په اسرارو د کائناتو).

**تفسير:** د دې سورت په شروع کې تاسې د شاتو او د ماريې قبطيې قصې ولوستلې، په آيت کې دا راښوولې شوي چې: بنده د يوې خبرې په هغومره پټو ساتلو کې چې کوښښ وکړي، نو کله چې الله تعالی د هغې ښکاره کول وغواړي؛ نو هيڅ کله هغه پټه نه پاتې کيږي، او هم د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د حسن معاشرت او د اخلاقو د وسعت ثبوت له دې څخه لا ښه ثابتيږي، چې په هغو چارو کې چې د دوی د طبيعت په خلاف پېښېدې، تر کومې اندازې پورې تساهل او اغماض فرمايه، او څرنګه يې د عفوې او د کرم له لارې ځنې خبرو ته کتل، ګواکې د شکايت په وخت کې يې پوره الزام نه ورکاوه.

اِنْ تَتُوْبَاۤ اِلَى اللّٰهِ فَقَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا ۚ

که توبه وباسئ تاسې دواړه (ای بيبيانو) الله ته (قبوله به شي)، نو په تحقيق کاږه شوي دي زړونه د تاسې دواړو.

تفسير: دا خطاب بي بي عائشې او بي بي حفصې رضي الله تعالى عنهما ته دى، كه تاسې توبه وباسئ؛ نو بېشكه د توبې ايستلو موقع ده، ځكه چې ستاسې زړونه د اعتدال له لارې څنې كاږه شوي دي، نو ښايي چې بيا هسې د بې اعتدالۍ په لوري لاړې نشئ، او د بې اعتدالۍ څنې ځانونه وژغورئ.

وَإِنْ تَظٰهَرَا عَلَيْهِ فَإِنَّ اللّٰهَ هُوَ مَوْلٰىهُ وَجِبْرِيْلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمَلٰٓئِكَةُ بَعْدَ ذٰلِكَ ظَهِيْرٌ ﴿٤﴾

او كه مرستې وكړئ تاسې دواړه يو له بلې سره (په ضرر د دغه نبي باندې)؛ نو بېشكه الله همغه مددګار دى د هغه (نبي) او جبريل او صالح د مؤمنانو (يې هم مددګاران دي) او ملائكې (يې هم) وروسته له دغه (مددګارۍ نه) مددګارانې دي.

تفسير: د زوجينو په كورنيو چارو كې ځينې اوقات ځينې خبرې ړومبى ډېرې معمولي او وړوكې په نظر راځي، خو كه لږ څه عنان او ملونه يې سسته پرې ښوده شي؛ نو په پاى كې هغه ډېر يو ويرووونكي او خطرناك شكل ځان ته غوره كوي، په تېره بيا ښځه كه كومې لويې كورنۍ ته منسوبه وي؛ نو هغه طبعًا يخپل پلار، ورور، خپلوانو او كورنۍ باندې نازيږي، نو ځكه يې تنبيه وفرمايله چې وګورئ ! كه تاسې دا راز مرستې، ملګرتيا او ښوونې كوئ؛ نو په ياد يې ولرئ چې له هغه څخه پيغمبر ته هيڅ ضرر نه رسيږي، ولې چې الله تعالى پرښتې او نېك بخت ايمان لرونكي درجه په درجه چې دچا مرسته كوونكي او رفيقان او مددګاران وي، نو د هغه په مقابل كې د بل كوم انسان تدبير نه چليږي، هو ! يواځې له هسې چارو څنې تاسې ته نقصان در پيښيږي.

عَسٰى رَبُّهٗٓ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُّبْدِلَهٗٓ أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنْكُنَّ مُسْلِمٰتٍ مُّؤْمِنٰتٍ قٰنِتٰتٍ تٰٓئِبٰتٍ عٰبِدٰتٍ سٰٓئِحٰتٍ ثَيِّبٰتٍ وَّأَبْكَارًا ﴿٥﴾

نژدې دى (او قادر دى) رب د دغه (نبي) كه چېرې طلاق دركړي تاسې ټولو ته په دې چې بدل وركړي ده لره نورې ښځې بهترې له تاسې څخه (په سيرت او صورت كې)، حكم منونكې، مؤمنانې، لمونځ كوونكې، توبه ايستونكې، عبادت كوونكې، روژه كوونكې، هجرت كوونكې، كونډې او پېغلې.

تفسير: يعنې داسې وسوسو ته پخپلو زړونو كې لارې مه وركوئ چې نارينه لره خو خامخا د ښځو ضرورت وي، او مونږ څنې ښايسته او ښكلې ښځې چېرې پيدا كيږي، نو ځكه دوى مجبور دي چې څمونږ ګردې ويناوې واوري، په ياد يې ولرئ ! كه الله تعالى اراده وفرمايي؛ نو له تاسې څنې بهترې ښځې هم خپل پيغمبر ته پيدا كولى شي، ولې چې د الله تعالى په دربار كې د هيڅ يوه شي لږوالى نشته.

يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قُوْٓا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيْكُمْ نَارًا وَّقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى ! وساتئ تاسې ځانونه خپل او كور كهول خپل (په اطاعت د الله) له اور څخه چې خس اور لګوونې بالنې د هغه سړي او تيږې (ګټې) دي.

تفسير: هر مسلمان ته لازم دي چې د خپلو ملګرو او كور كهول والو په ديندارۍ او مسلمانۍ كې هم توجّه ولري، او د هغوى په سمون او لار ښوونه كې زيار وباسي، په پوهولو، ويرولو، روزلو، مينه، محبت، وهلو او نورو وسيلو سره كوښښ وكړي چې هغې ته د ديانت چارې ور وښيي، كه سره له دې هم هغوى په لاره باندې برابر نشي؛ نو د هغوى كمبختي او د ده بې قصوري ښېژندى شي د: ﴿وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ﴾ تفسير د لمړي جزء په (البقرة) سورت كې څمونږ دغه مبارك تفسير كې ليكلى شوى دى، هلته دې وكوت شي !.

عَلَيْهَا مَلٰٓئِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ

په دې اور باندې مقررې دي پرښتې كلك زړونې قوّتناكې زبردستې.

**تفسير:** يعنې دغه پرښتې پر مجرمانو باندې زړه سوى او رحم نه كوي، او نه يې پرې ږدي، او نه د هغه د زبردست نيولو څنې هيڅوك ځان ژغورلی شي، او نه ترې تښتېدلی شي.

لَّا يَعْصُوْنَ اللّٰهَ مَآ اَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ ﴿۶﴾

نه كوي نافرماني دغه (پرښتې) له الله د هغه څه چې امر يې كړى دى دوى ته، او كوي دوى هغه كـار چې پـرې مأمورې وي (من جانب الله).

**تفسير:** يعنې نه د الله تعالى له حكمونو څنې خلاف تګ كوي، او نه د هغو د احكامو په تعميل كې او په ځاى راوړلو كې څه ډيل او سستي كوي، او نه د حكم په امتثال كم قوّته او عاجزانې دي، او په قيامت كې ويلى كيږي دغو منكرانو ته داسې چې:

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ ؕ اِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿۷﴾

اى هغو كسانو چې كافران منكران شوي يئ، يعنې اى كافرانو ! عذر مه كوئ تاسې نن ورځ (ځكه چې نه قبليږي)، بېشكه همدا خبره ده چې بدل جزاء به دركړ شي تاسې ته د هغه څه عمل چې وئ تاسې چې كول به مو (په دنيا كې).

**تفسير:** يعنې د قيامت په ورځ كې كله چې د جهنّم عذاب په مخ كې شته، نو هلته به منكرانو ته ويلى كيږي چې اوس پلمې او بهانې مه راښيئ، ځكه چې نن به هيڅ يوه پلمه او بهانه نه چليږي، بلكه هر څه چې مو كړي دي؛ د هغه سزا به تاسې ته پوره دركوله كيږي، او څمونږ له لورې به په تاسې باندې هيڅ يو ظلم او زياتى نه كيږي، دا ګرد ستاسې عملونه دي، چې د عذاب په بڼې تاسې ته په نظر راځي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْٓا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا ؕ

اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى ! توبه وباسئ تاسې الله ته توبه خالصه رښتيا د زړه له كومې.

**تفسير:** د زړه له كومې خالصه توبه دا ده چې په زړه كې بيا د ګناه يو خيال هم تېر نشي، كه وروسته له توبې څخه بيا هم د ده په زړه كې د همغو چټي او خرابو چارو چرتونه او فكرونو ته انديښنه وګرځېده، نو وپوهيږئ چې د هغه په توبه كې څه نقص او كسر شته، او د ګناه بنياد يې لا له بېخه نه دى وتلى.

عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۙ يَوْمَ لَا يُخْزِى اللّٰهُ النَّبِيَّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ ۚ

اميد دى چې رب ستاسې وبه رژوي له تاسې څنې ګناهونه ستاسې، او داخل به كړي تاسې هغو جنّتونو ته چې بهيږي له لاندې د (ونو او ماڼيو د) هغو (څلور قسمه) ويالې، (دا نونيستل ستاسې دي جنّت ته) په هغه ورځ كې چې وبه نه شرموي الله نبيّ او هغو كسانو لره چې ايمان يې راوړى دى له هغه سره.

تفسیر: یعنې د نبي مقام خو ډېر لوړ دی، د هغوی ملګرو ته هم ذلّت نه ورپېښېږي، بلکه په خوړا اعزاز اکرام د فضل او شرف په مناسبو او لوړو مقام کې ځای مومي، او د ډېر لوی افتخار او امتیاز خاوندان ګرځي.

نُورُهُمْ يَسْعٰى بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَبِاَيْمَانِهِمْ

رڼا د دوی به ځغلي وړاندې د دوی څخه او په ښي خوا د دوی.

تفسیر: د دې بیان د (حدید) په سورت کې پخوا له دې نه تېر شوی دی، وګورئ ځمونږ دغه مقدس تفسیر.

يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اَتْمِمْ لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا ۚ اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝۸

وبه وایي دوی: ای ربه ځمونږ! پوره کړه باقي ولره مونږ لره رڼا ځمونږ، او وبښه مونږ لره (ګناهونه ځمونږ)، بېشکه ته پر هر شي باندې ښه قادر یې.

تفسیر: یعنې ځمونږ رڼا تر آخر پورې قائمه ولره، او مه یې وژنه!، لکه چې د منافقینو په نسبت د (حدید) په سورت کې ولیکل شو، چې د هغوی رڼا مړه کیږي، او په توره تیاره کې پاتې کیږي.

يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنٰفِقِيْنَ وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ ۚ

ای نبي (ای ځما پیغمبره) جهاد جنګ کوه له کفّارو سره (بالسّیف) او له منافقانو سره (باللسان) او سختي کوه پر دوی باندې.

تفسیر: د محمد صلی الله علیه وسلم خلق او پوست خوی په دې اندازې سره زیات وو، چې الله تعالی نورو ته د تحمّل کولو امر فرمایي او په دوی باندې د سختي کولو امر کوي.

وَمَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۗ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ۝۹

او ځای (د ورتللو) د دوی جهنّم دوزخ دی، او بد مرجع ځای د ورتللو دی (دا دوزخ).

تفسیر: ړومبی یې د مؤمنانو د هستوګنې ځای ور وښود، او بیا یې د هغوی په مقابل کې د کفارو او د منافقانو د هستوګنې ځای او کور راښکاره کړ.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ لُوْطٍ ۗ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدّٰخِلِيْنَ ۝۱۰ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ

بیان کړی دی الله یو مثال لپاره د هغو کسانو چې کافران منکران شوي دي، ښځه د نوح او ښځه د لوط، چې وې دا (دواړه ښځې تر نکاح) لاندې د دوو بندګانو له بندګانو صالحانو ځمونږ، بیا خیانت وکړ (دې دواړو ښځو) له دغو دواړو (صالحانو خاوندانو خپلو سره)، نو دفع نه کړ (دغو پیغمبرانو) له دغو (خپلو) ښځو څخه له عذاب د الله څخه هیڅ شی، او وویل شو: ننوځئ تاسې دواړه (دوزخ ته) سره له نورو ننوتونکیو (کافرانو). او بیان کړی دی الله یو مثال لپاره د هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی: ښځه د فرعون.

**تفسير:** يعنې نوح او لوط عليهما السلام د الله څنګه نېک بندګان وو، مګر د دواړو په کورونو کې د هغوی ښځې منافقانې وې، چې په ښکاره ډول به يې هغو سره تعلّقات لرل، خو په پټه به له کافرانو سره ملې وې، نو بيا څنګه شول؟ له عامو دوزخيانو سره دوی هم د الله تعالی له لوري په دوزخ کې وغورځول شول، او د پيغمبرانو د زوجيت تعلّقات يوه ذره هم هغوی ته څه فائده ونه رسوله، او نه يې له عذابه وژغورل، پرته له دې څخه د فرعون ښځه بي بي آسيه رضي الله تعالى عنها بنت مزاحم چې يوه پخه ايمانداره او كامله وليه وه، او د هغې مېړه د الله تعالی لوی باغي وو، هغې نېکې ښځې خپل مېړه له عذابه ونه شو ژغورلی، او نه د مېړه د شرارت او بغاوت په جرم هغې ښځې ته کوم اخروي رنځ ور ورسېد.

إِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ لِي عِندَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ

کله چې وويل دې: ای ربه څما ! جوړ کړه ماته په نزد خپل يو کور په جنّت کې.

**تفسير:** يعنې خپل قرب دې را عنايت کړه ! او په جنّت کې راته يوه ماڼۍ ودانه کړه !.

وَنَجِّنِي مِن فِرْعَوْنَ وَعَمَلِهِ وَنَجِّنِي مِنَ الْقَوْمِ الظَّالِمِينَ ﴿١١﴾

او ومې ژغوره (خلاصه) مې کړه له عذاب د فرعون څخه، او له عمل د ده څخه، او ومې ژغوره (خلاصه مې کړه) له قومه ظالمانو څخه.

**تفسير:** يعنې د فرعون له منګولو څخه مې وژغوره !، او د هغه له ظلم څني راته نجات وبښه، دوی موسی عليه السلام پاللی وو، او د دوی له مرستيالانو څني وو، وايي: کله چې فرعون ته دا حال ورڅرګند شو؛ نو دا يې په څلورو موږو کې وتړله، او راز راز ربړونه او ايذاوي يې ور ورسولې، په همدې حال کې د الله تعالی له لوري هغې ته د هغه د جنّت ځای ور وښوول شو، چې د هغه لامله په هغې باندې هغه ګرد ربړونه او سختياوې ور اسانې شوې، په پای کې فرعون هغه سياستًا ووژله، او دې د شهادت کنډول په سر واړاوه، او د حقيقي مالك الملكوت أجلّ وأعلى شأنُهُ وأعظمَ برهانُهُ مخې ته ورسېده، په صحيح حديث کې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دې د کاملتوب اعلان فرمايلی، او بي بي مريم سره يې د هغه شتوالی ذکر کړی دی، په زرهاوو رحمتونه دې وي د دوی په پاک روح باندې.

وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا

او (مثال بيان کړی دی الله د) مريم لور د عمران هغه چې ساتلی يې وو ځای د شهوت خپل (له نکاح او سفاح څخه).

**تفسير:** يعنې له حلال او له حرام له ګردو څخه يې محفوظه وساتله.

فَنَفَخْنَا فِيهِ مِن رُّوحِنَا

نو ومو پو کل (په ګرېوان د هغې) کې له روح خپل څخه.

**تفسير:** يعنې د پرښتې په وسيله يې يو روح ور وپوکه، جبريل عليه السلام د دې د کميسه په ګرېوان کې پوکلی وو، چې د هغه په نتيجه کې د حمل استقرار وشو، او مسيح عليه السلام پيدا شو.

وَصَدَّقَتۡ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا وَكُتُبِهٖ

او تصديق باور كړى وو هغې په خبرو د رب خپل، او په كتابونو د ده.

تفسير: د رب خبرې هغه وې چې د پرښتو په ژبو سره د (آل عمران) په سورت كې بيان شوي دي، ﴿وَاِذۡ قَالَتِ الۡمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرۡيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصۡطَفٰكِ وَطَهَّرَكِ﴾ الآية ـ او له كتابونو څخه به عام سماويه كتابونه مراد وي، او د تخصيص ضرورت نشته.

وَكَانَتۡ مِنَ الۡقٰنِتِيۡنَ ۱۲

او وه دا له امر منونكيو فرمان وړونكيو څخه.

تفسير: يعنې د كاملينو نارينه وو په شان په بندگۍ او طاعت كې ټينګه او ثابت قدمه وه، باقي داسې وبوله چې د قانتينو له كورنۍ څخه وه.

تمت سورة التحريم، ولله الحمدُ والمنّة، وبه التوفيق والعصمة.



# سُوْرَةُ المُلْكِ

«د (الملک) سورت مکي دی، (۳۰) آیته دوه رکوع لري، په تلاوت کې (۶۷) او په نزول کې (۷۷) سورت دی، وروسته د (الطّور) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱﴾

ډېر برکت کوي هغه (الله) چې په لاس د ده کې دی ملک سلطنت، او همدغه (الله) پر هر څیز باندې ښه قادر دی.

تفسیر: یعنې لوی برکتناک او خورا ثابت دی په دوام هغه الله تعالی چې ګرد ملک د ده دی، او یواځې په هر شي کې د هغه واک او اختیار دی، او حکم یې پر هر څیز او هر ځای باندې چلیږي.

الَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا

هغه (الله) چې پیدا کړی یې دی مرګ او ژوندون لپاره د دې چې وازمویي تاسې چې کوم یو له تاسې ډېر ښه دی د عمل له مخې.

تفسیر: یعنې د مړینې او د ژوندون سلسله هغه الله قائمه کړې ده، مونږ او تاسې ړومبی هیڅ نه وو، هم هغه مرګ او مړینه وګڼئ، بیا پیدا شو، وروسته له هغه مړینه او مرګ پر مونږ راځي، بیا مو له هغې مړینې او مرګ څخه ژوندي راپاڅوي، لکه چې د (البقرة) په دریمې رکوع (۲۸) آیت څمونږ د دغه تفسیر کې راغلي دي: ﴿وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ﴾ د مړینې او د ژوندون دا ګردې سلسلې د دې لپاره دي چې ستاسې د چارو کتنه او ازموینه وکړه شي چې کوم یو خراب کار کوي؟ او کوم یو ښه کوي؟ په ړومبنې ژوندون کې ازموینه کیږي او په دویم ژوندون کې د هغه نتیجه فورًا دربسوله کیږي، فرض یې کړئ! که ړومبی ژوندون نه وی؛ نو چا به عمل کاوه، که موت نه راتلی؛ نو خلق به له مبدأ او منتهی څخه غافل او بې فکره پاتې کېدل، او هیڅ به نه پسې ګرځېدل، که بیا ژوندون نه وی؛ نو د ښو او بدو چارو بدل به چېرې ورکاوه کېده؟.

وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ﴿۲﴾

او همدغه (الله) ښه غالب قوي دی، ډېر مغفرت کوونکی دی.

تفسیر: یعنې داسې زبردست دی چې د هغه له نیولو څخه هیڅوک ځان نشي بچ کولی، او لوی لوروونکی مغفرت کوونکی او ښوونکی هم دی.

الَّذِيْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا

هغه (الله) چې پیدا کړي یې دي اووه اسمانونه طبقې طبقې لاندې باندې.

**تفسیر:** په حدیث کې راغلي دي چې: د یوه اسمان په سر باندې بل اسمان، او د هغه د پاسه دریم اسمان او همداسې یو پر بل باندې اووه اسمانونه سره لاندې باندې طبقې دي، چې له یوه اسمانه تر بل اسمان پورې د پنځو سوو کلونو مسافه ده.

مَا تَرٰى فِیْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ

وبه نه وینې ته (ای کتونکیه) په پیدایښت د رحمان کې هیڅ تفاوت خلل عیب فرق.

**تفسیر:** یعنې قادر ذات پخپل انتظام او کاریګرۍ کې هیچېرې هیڅ فرق نه دی ایښی، په هر شي کې له انسان څخه اخیستې تر حیواناتو، نباتاتو، جماداتو، عناصرو، علوي او سفلي اجرامو، او اوو اسمانونو، ستوریو او نورو پورې یو شانې د هغه قدرت او کاریګري ښکاري.

هسې نه دی چې ځینې شیان یې په حکمت او بصیرت سره او ځینې یې همداسې چټي او بېکاره او بې اصوله پیدا کړي وي (العیاذ بالله)، که چېرې چاته هسې کوم شی په نظر ورشي؛ نو ودې پوهیږي چې د هغه په ځای د ده په عقل او نظر کې څه نه څه نقص او قصور شته.

فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ﴿۳﴾

بیا واړوه (خپلې) سترګې چې آیا وینې ته (په کې) څه چاود څیروالی نقصان.

**تفسیر:** یعنې ګرد کائنات له ښکته څخه تر پاسه پورې په یوه قانون او مضبوط نظام سره تړلی شوي دي، او یو لړ یې له بل لړ سره داسې نښتی دی چې هیچېرې څه چاود، فرق، تفاوت، سوری، خلل، نقصان، عیب او څه د تنقید ځای په کې نشته، او نه د هغه په کاریګرۍ کې څه اهمال او اختلال موندل کیږي، هر شی همغسې دی لکه چې ښایي، که دا آیتونه د اسمان په نسبت وي؛ نو مطلب به یې داسې وي چې: ای اوربدونکیه (مخاطبه) ! پاس اسمان ته وګوره چې په کوم ځای کې یې څه لاندې باندې درز چاود څیروالی او نقصان موندل کیږي؟ بلکه یو صاف، هوار، متصل، مربوط او منظم شی په نظر راځي، چې سره د تېربدلو د دومره زمانو او د ازمنوو د تطاولو تر نن پورې هیڅ فرق او تفاوت نه په کې لیدل کیږي.

ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَیْنِ یَنْقَلِبْ اِلَیْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِیْرٌ ﴿۴﴾

بیا وګرځوه سترګې خپلې (اسمان ته ای کتونکیه !) دوه دوه ځلې، بېرته به راو ګرځي پاتې سترګې (ستا) بېرته ګرځېدونکې او دغه (سترګې به وي) ذلیلې ستړې ستومانه (له نه لیدلو د خلل نه).

**تفسیر:** یعنې ممکن دي چې په یوه نیمه کتنه کې سترګې تېروځي، نو ځکه په پوره کوښښ سره څو څو ځلې وګوره !، چې آیا په کوم ځای کې کوم چاود، کندو، څیروالی، او رخنه شته؟ ښه غور، فکر او دقّت وکړه، او بیا کتنه پرې وکړه، چې د قادر ذات په انتظام کې خو چېرې د ګوتې ایښوولو ځای شته؟ په یاد یې ولرئ ! چې ستاسې سترګې له ډېرو کتلو څخه ستړې ستومانیږي، او ذلیلې، درمانده خړې پړې به بېرته راګرځي، خو د الله تعالی په کاریګرۍ او مصنوعاتو او انتظاماتو کې به هیڅ عیب او قصور نه شي ایستلی.

وَلَقَدْ زَیَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْیَا بِمَصَابِیْحَ

او خامخا په تحقیق ښایسته کړی دی مونږ دا اسمان ډېر نژدې (ځمکې ته) په ډیوو ستوریو سره.

**تفسیر:** یعنې د اسمان په لوري وګورئ ! چې د شپې له مخې د ستوریو اشعه، پلوشې، ځلېدل او سینګار په څه رونق او شان سره بریښي، دا د قدرت هسې رڼاګانې او ډیوې دي چې د نړۍ ډېرې ګټې په هغو پورې تړلې دي.

وَجَعَلْنٰهَا رُجُوْمًا لِّلشَّیٰطِیْنِ

او ګرځولي دي مونږ دغه (ډیوې ستوري) ویشتونکي شیطانانو لره.

**تفسیر:** د (رجم الشیاطین) مضمون د (الحجر) په سورت او نورو ځایونو کې په تفصیل سره تېر شوی دی.

وَاَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِیْرِ ۝

او تیار کړی دی مونږ دوی لره عذاب ډېر سوځوونکی (د دوزخ).

**تفسیر:** یعنې په دنیا کې په شهابو سره ویشتل کیږي، او په آخرت کې دوی لره د دوزخ اور تیار دی.

وَلِلَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ ؕ وَبِئْسَ الْمَصِیْرُ ۝

او شته لپاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي په رب خپل باندې عذاب د جهنّم دوزخ، او بد مرجع ځای د ورتللو دی (دا دوزخ).

**تفسیر:** یعنې د کافرانو د هستوګنې ځای له شیاطینو سره په همغه دوزخ کې دی.

اِذَاۤ اُلْقُوْا فِیْهَا سَمِعُوْا لَهَا شَهِیْقًا وَّهِیَ تَفُوْرُ ۝ تَكَادُ تَمَیَّزُ مِنَ الْغَیْظِ ؕ

کله چې وغورځولی شي (کافران) په دغه (اور د دوزخ) کې وابه وري دوی دغه (دوزخ لره) اواز لوی بد، او هغه به خوټیږي. نژدې به وي (دا دوزخ) چې ټوټې ټوټې شي له جهته د قهره (غضبه پر کفّارو باندې).

**تفسیر:** یعنې په هغه وخت کې به د دوزخ غږ ډېر بد او ویروونکی وي، او په بې انتها خوټېدلو او اشتعال سره به هسې راښکاري لکه چې له ډېرې غوصې او قهر دې پورې راوړی چې اوس به سمدلاسه ټوټې ټوټې الوځي (أعاذنا الله منها بلطفه و کرمه).

كُلَّمَاۤ اُلْقِیَ فِیْهَا فَوْجٌ سَاَلَهُمْ خَزَنَتُهَاۤ اَلَمْ یَاْتِكُمْ نَذِیْرٌ ۝

هر کله چې وغورځوله شي په کې یوه ډله (د منکرانو)؛ پوښتنه به وکړي (توبیخًا) له هغوی نه خازنانې د دوزخ (داسې چې) آیا نه وو راغلی تاسې ته (ای منکرانو) ویروونکی (پیغمبر په دنیا کې).

**تفسیر:** یعنې دا پوښتنې به د زیاتو ذلیلولو، محجوبولو او خړولو لپاره وي، چې تاسې په دې مصیبت ککړ شوي یئ، آیا پخوا له دې څخه چا نه وی خبر کړي؟ او نه یې متنبه کړي او ویرولي وئ؟ چې په دې لاره باندې مه ځئ !، که نه سم به په دوزخ کې لوېږئ، چې هلته به داسې سخت سخت عذابونه وي.

قَالُوۡا بَلٰی قَدۡ جَآءَنَا نَذِیۡرٌ ۙ۬ فَکَذَّبۡنَا وَ قُلۡنَا مَا نَزَّلَ اللّٰہُ مِنۡ شَیۡءٍ ۚۖ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا فِیۡ ضَلٰلٍ کَبِیۡرٍ ﴿۹﴾

نو وبه وايي (منكران داسې چې) هو ! په تحقيق راغلى وو مونږ ته ويروونكى (پيغمبر)، نو دروغجن وباله مونږ دى، او وويل مونږ (هغوى ته چې) نه دى رالېږلى الله هيڅ شى، نه يئ تاسې مګر په ګمراهۍ لويه كې.

تفسير: يعنې خجل او نادم شوي په ډېر حسرت او ندامت سره به جواب وركوي چې: بېشكه ويروونكى پيغمبر مونږ ته راغلى وو، مګر مونږ د هغوى خبرې ونه منلې، او دوى به مو تل دروغجن ګڼل، او ورته ويل به مو چې: تاسې غلطې خبرې كوئ، نه د الله تعالى له لوري رالېږلى شوي يئ، او نه پر تاسې باندې وحي راځي، بلكه تاسې د عقل او پوهې له لارې څخه لرې تللي يئ، او په سخته ګمراهۍ كې لوېدلي يئ.

وَ قَالُوۡا لَوۡ کُنَّا نَسۡمَعُ اَوۡ نَعۡقِلُ مَا کُنَّا فِیۡۤ اَصۡحٰبِ السَّعِیۡرِ ﴿۱۰﴾

او وبه وايي (منكران) كه چېرې وى مونږ چې اورېدلې مو (خبرې د انبياوو په دنيا كې په سماع القبول سره)، يا مو عقل لرلى (په خير او شر خپل)؛ نو نه به وو مونږ (نن) په اهل ملګرو د دوزخ كې.

تفسير: يعنې مونږ په دې نه پوهيدو چې دا ويروونكي به رښتين راووځي، كه مونږ په هغه وخت كې د كوم پند وركوونكي خبرې اورېدلې وى، او له پوهې او عقل څخه مو كار اخيستى وى، او د معاملې په حقيقت باندې پوهيدلي وى؛ نو نن به ولې د دوزخيانو په ډله كې ګډېدو، او تاسې ته به د دې پيغور او طعن وركولو موقع څرنګه په لاس درتله؟.

فَاعۡتَرَفُوۡا بِذَنۡۢبِہِمۡ ۚ فَسُحۡقًا لِّاَصۡحٰبِ السَّعِیۡرِ ﴿۱۱﴾

نو اقرار يې وكړ (قائل شول) دوى په ګناه خپلې باندې، نو لرې والى دى خاوندانو د دوزخ لره، (د الله تعالى له رحمته دې لرى وګرځول شي).

تفسير: يعنې پخپله دوى اقرار وكړ چې بېشكه مونږ مجرمان يو، هسې بې ګناه مونږ په دوزخ كې نه يو لويدلي، خو د دې ناوخته اقرار او اعتراف څخه هغوى ته هيڅ ګټه او فائده نه وررسيږي، او هسې ارشاد به كيږي: ﴿فَسُحۡقًا لِّاَصۡحٰبِ السَّعِیۡرِ﴾ «اوس دې لرې او ورك شي او دفعه دې شي دوزخيان»، دوى لره د رحمت په شاوخوا كې هيڅ د هستوګنې ځاى نه دى پاتې، بلكه دوى ته لرېوالى دى له مهربانۍ د الله څخه.

اِنَّ الَّذِیۡنَ یَخۡشَوۡنَ رَبَّہُمۡ بِالۡغَیۡبِ

بېشكه هغه كسان چې وېرېږي له رب خپل په غيب سره.

تفسير: يعنې الله تعالى يې نه دى ليدلى، مګر پر هغه او د هغه په صفاتو باندې پوره باور لري، او د هغه د عظمت او د جلال له تصوّره رېږدي، او د هغه د عذاب له خياله لړځيږي، يا د (بالغيب) مطلب دا دى چې د خلقو له مجمع څخه جلا په عزلت اوخلوت كې هم په پټه سره خپل پروردګار يادوي، او د هغه له وېرې څخه لړځېدونكي وېرېدونكي وي.

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ كَبِيْرٌ ﴿١٢﴾ وَاَسِرُّوْا قَوْلَكُمْ اَوِ اجْهَرُوْا بِهٖ ؕ اِنَّهٗ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿١٣﴾

شته دوی ته مغفرت (د گناهونو) او اجر ثواب ډېر لوی (چې جنّت دی). او که پټوئ تاسې خبره خپله، او که ښكاروئ (هغه خبره)، بېشكه هغه (الله) عليم ښه دانا دی په پټو خبرو د سينو باندې هم.

**تفسیر:** یعنې اګر که تاسې هغه نه وينئ، مګر هغه تاسې ويني، او ستاسې په هره پټه او ښكاره خبره كه په خلوت كې وي يا په جلوت كې؛ پوهيږي، بلكه پر هغو ټولو شيانو باندې هم خبردار دی چې ستاسې په زړونو كې ګرځي، لنډه يې دا چې سره له دې چې الله تعالى ستاسې له سترګو څخه پټ او غائب دی، خو بيا هم ستاسې په ټولو پټو او ښكاره وو باندې پوه او خبردار دی، او هيڅ شی ترې غائب او پټ نه دي.

اَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ ؕ وَهُوَ اللَّطِيْفُ الْخَبِيْرُ ﴿١٤﴾

آيا نه پوهيږي (په پټو اسرارو د زړونو) هغه (الله) چې پيدا كړي يې دي (زړونه؟ بلكه هر شی ورمعلوم دی)، او همغه (الله) دی عليم دانا (په پټو اسرارو) ښه خبردار دی (په ظواهرو د موجوداتو هم).

**تفسیر:** یعنې ستاسې او ستاسې د افعالو او اقوالو د هر څيز خالق او مختار هم همغه الله تعالى دی، كله چې خالق او مختار كوم شی پيدا كوي، نو خامخا په هغه باندې پوه او خبردار او پوره عالم هم وي، كه نه پيدا كول ناممكن دي، او داسې امكان نه لري چې يو شی يې جوړ كړی وي خو پرې نه پوهيږي.

هُوَ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ ذَلُوْلًا فَامْشُوْا فِيْ مَنَاكِبِهَا وَكُلُوْا مِنْ رِّزْقِهٖ ؕ وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ ﴿١٥﴾

دغه (الله) همغه ذات دی چې ګرځولې يې ده تاسې ته ځمكه پسته تابعداره، نو ځئ ګرځئ تاسې په اوږو اطرافو لارو د دې ځمكې كې، او خورئ تاسې له (حلال) رزق د دغه (الله)، او خاص دغه (الله) ته بيا ژوندي راپورته كېدل ستاسو دي (پس له مرګه).

**تفسیر:** یعنې ځمكه يې ستاسې په مقابل كې داسې نرمه، پسته، ذليله، مسخّره او منقاده ګرځولې ده، چې هر څه وغواړئ؛ په هغې كې تصرّف كولی شئ، او په هغې باندې او د هغې پر غرونو باندې ځئ او راځئ، او ترې خپل خوراك، څښاك او نور ضروريات ګټئ، مګر دومره په ياد ولرئ ! هغه څوك چې خواړه او نور شيان دركوي، د همغه په لوري پس له مرګه او بيا ژوندي پاځېدلو ستاسې بيا ورتګ دی.

ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِي السَّمَآءِ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمُ الْاَرْضَ فَاِذَا هِيَ تَمُوْرُ ﴿١٦﴾

آيا مأمون ډاډه شوي يئ تاسې له هغه (الله) څخه چې په اسمانونو كې دی چې راپورته به كړي په تاسې باندې ځمكه (او ډوب به مو كړي په كې)؟ بيا به (ناڅاپه) هلته دا (ځمكه) ولړځيږي وخوځيږي.

**تفسیر:** ړومبی يې انعامات راښوولې وو، اوس د قهر انتقام او د پوښتنې شان راښيي او ويرول يې مقصود دي، يعنې بېشكه ځمكه تاسې لره تابعه او مسخره شوې ده، مګر په ياد يې ولرئ چې په هغې باندې حكومت د همغه ذات دی، چې د دې اسمان خاوند دی، كه وغواړي تاسې په ځمكه كې داسې خښوي چې له چارچاپېره به ځمكه درباندې

پورته کوي، او په هغه وخت کې به ځمکه ولړځيږي، او تاسې د هغې په همدا خوځېدلو سره په کې ډوبيږی، نو ځکه سړي لره نه ښايي چې د هغه خالق مختار له دربار څخه بې وېرې او بې پروا شي، او په شرارت باندې لاس پورې کړي، او د هغه په ډيل او معطلی باندې مغرور شي.

أَمْ أَمِنتُم مَّن فِي السَّمَاءِ أَن يُرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا ۖ

آیا مأمون ډاډه شوي يئ تاسې له هغه (الله) څخه چې په اسمانونو کې دی له دې نه چې وبه لیږي په تاسې باندې کاڼي ویشتونکی باد.

تفسیر: یعنې په ډېره خوښی سره په ځمکه باندې ځئ راځئ، او خواړه او نور ضروریات ځان ته ګټئ، خو سره له هغه خپل الله تعالی مه هېروئ !، که نه هغه الله تعالی په دې باندې قادر دی چې پر تاسې باندې یوه سخته سیلی درولیږي، یا د کاڼو باران درباندې اووروي، نو بیا به تاسې څه وکړلی شئ، او ستاسې به دا ګرد ځغلېدل، لاندې باندې کېدل په ځای پاتې کیږي.

فَسَتَعْلَمُونَ كَيْفَ نَذِيرِ ﴿١٧﴾

نو ژر ده چې پوه به شئ تاسې چې څه رنګه وو ویرول ځما.

تفسیر: یعنې له هغه عذابه چې تاسې وېرول کېږئ؛ هغه څومره تباه کوونکی او ویروونکی وو؟.

وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ﴿١٨﴾

او خامخا په تحقیق دروغجن ګڼلي وو (کفّارو خپل انبیاء) چې پخوا له دغو (کفّارو د مکې) څخه وو، نو څه رنګه وو انکار د عذاب ځما !؟.

تفسیر: یعنې له عاد او ثمود او له نورو سره کومه معامله چې شوې ده، له هغې څخه عبرت واخلئ !، او وګورئ چې د هغوی په حرکاتو باندې هم مونږ انکار کړی وو، نو هغه ځمونږ انکار څه رنګه د عذاب په صورت ورښکاره شو؟.

أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ ۚ مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمَٰنُ ۚ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ ﴿١٩﴾

آیا نه ګوري دوی مرغانو ته (په هوا کې) له پاسه د سرونو د دوی؟ پرانیځي وزرونه او ټولوي (وزرونه خپل)، نه نیسي نه ساتي دوی په هوا کې له پرېوتو مګر خو رحمان، بېشکه هغه (الله) په هر څیز باندې بینا ښه لیدونکی دی.

تفسیر: پورتنی د اسمان او د ځمکې ذکر شوی وو، دلته د هغو د منځ شیانو ذکر دی، یعنې د الله تعالی قدرت ته وګورئ چې مرغان د ځمکې او د اسمان په منځ کې کله خپل وزرونه غوړوي او پرانیځي او خواره یې کړي، څرنګه ورسره الوځي؟ او کله یې ټولوي، او سره له دې چې د ثقیل جسم او د درنې بنې او بشرې خاوندان او مائل الی المرکز دي، خو بیا هم هغوی لاندې نه رالویږي، او نه د ځمکې جاذبه قوّه هغه وړوکی مرغه د خپل ځان په لوري راښکلی شي، وښیه پر ته (علاوه) له الله تعالی د چا قدرت هسې دی؟ چې هغه یې په فضاء او تشتیا کې هسې ساتلی دی؟ بېشکه «رحمان» پخپل رحمت او حکمت سره د هغوی بنې هسې جوړې کړې دي، او په هغوی کې یې داسې یو قُوّت ایښی دی، چې د هغه په وسیله هغوی بې تکلّفه په هوا کې څو څو ګړۍ الوتلی او ګرځېدلی شي، همغه د هر یوه څیز په استعداد باندې ښه پوهیږي، او ګرد مخلوق تر خپل نظر لاندې ساتي.

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِیْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ یَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ ؕ اِنِ الْكٰفِرُوْنَ اِلَّا فِیْ غُرُوْرٍ ﴿۲۰﴾

آیا څوک دی هغه (ذات) چې هغه لښکر ستاسې شي کومک مرستې وکړي له تاسې سره بې له «رحمان»؟ نه دي کافران مګر خو په غرور غولېدلو کې دي.

تفسیر: منکران سخت غولیدلي دي، که هغوی داسې ګڼي چې د هغوی معبودان او د فرضي بتانو لښکرې دوی د الله تعالی لـه عذابه او لـه راتلونکي آفت څخه ژغورلی شي؛ ښه وپوهېږئ ! چې له رحمانه جلا شوي هیڅوک به هغوی ته مدد او مرستې ونه رسوي.

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِیْ یَرْزُقُكُمْ اِنْ اَمْسَكَ رِزْقَهٗ ۚ

آیا څوک دی هغه (ذات) چې رزق درکړي تاسې ته که چېرې بند کړي (الله) درڅخه رزق خپل؟ (هیڅوک مو بې له الله رازق نشته).

تفسیر: یعنې که الله تعالی د خوړو سامان او اسباب در بند کړي، نو څوک به طاقت ولري چې په تاسې باندې د خوړو ورونه پرانیځي؟.

بَلْ لَّجُّوْا فِیْ عُتُوٍّ وَّ نُفُوْرٍ ﴿۲۱﴾

بلکه ننوتلي او محکم شوي دي دوی په سرکشۍ عناد او تېښته نفرت کې (له حقه).

تفسیر: یعنې دا خلق پخپلو زړونو کې پوهېدل چې له الله تعالی څخه جلا پاتې شوي نه د چا د نقصان مخه نیولی شي، او نه چاته ګټه رسولی شي، مګر یواځې د شرارت او سرکشۍ لامله کله چې د توحید او اسلام په لوري راوبللی شي؛ تور خوري او یاغي کیږي.

اَفَمَنْ یَّمْشِیْ مُكِبًّا عَلٰی وَجْهِهٖۤ اَهْدٰۤی اَمَّنْ یَّمْشِیْ سَوِیًّا عَلٰی صِرَاطٍ مُّسْتَقِیْمٍ ﴿۲۲﴾

آیا پس هغه څوک چې ځي نسکور په مخ خپل باندې ښه لار موندونکی وي، یا هغه څوک چې ځي برابر سم په لارې سمې باندې؟.

تفسیر: یعنې د ظاهري کامیابۍ لارې طي کوي، همغه تر اصلي مقصد پورې رسېدی شي، چې په سمه لاره باندې د سر یو په شان برابر لاړ شي، هغه څوک چې په کږه لاره لکه ړانده نسکور ځي؛ نو هغه د مقصود تر منزل پورې نشي رسېدی، دا د یوه موحّد او د یوه مشرک مثال دی، په قیامت کې د دوی دواړو په ورتګ کې همداسې فرق لیدل کیږي.

قُلْ هُوَ الَّذِیْۤ اَنْشَاَكُمْ وَ جَعَلَ لَكُمُ السَّمْعَ وَ الْاَبْصَارَ وَ الْاَفْـِٕدَةَ ؕ قَلِیْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۳﴾

ووایه (ای محمده !) دغه (الله) هغه ذات دی چې پیدا کړي یې یئ تاسې، او درکړي ګرځولي یې دي تاسې ته غوږونه او سترګې او زړونه، ډېر لږ شکر وباسئ تاسې (په دغو نعماوو د الله).

تفسیر: یعنې الله تعالی د اورېدلو لپاره غوږونه، او د لیدلو لپاره سترګې، او د پوهېدلو لپاره زړونه راکړي دي، تر څو د هغه حقونه ومنو، او دا قوّتونه په ښه لاره کې مصروف کړو، او د هغه طاعت او فرمانبرداري وکړو، مګر داسې شکر ګزاره سړي ډېر لږ دي، کافرانو ته وګورئ چې هغوی د دې نعمتونو حق څرنګه په ځای راوړي؟ او د الله تعالی دا ورکړی شوي قوّتونه د هغه الله تعالی په مقابل کې څنګه استعمالوي؟.

قُلۡ هُوَ الَّذِیۡ ذَرَاَكُمۡ فِی الۡاَرۡضِ وَاِلَیۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ ﴿۲۴﴾

ووایه (ای محمده !) دغه (الله) هغه ذات دی چې پیدا (خواره) یې کړئ تاسې په ځمکه کې، او خاص ده ته به راټول کړل شئ تاسې.

**تفسیر:** یعنې ابتداء هم له هغه څخه شوې ده، او انتهاء به هم پر هغه وي، له هر ځایه چې راغلي یئ؛ هلته به بېرته ځئ، بایده وو چې له هغه څنې یوه شیبه هم نه غافلېدئ، او هر وخت د هغه په فکر او یاد کې وئ، او زیار وکړئ تر څو هغه مالك په مخ کې تش لاس ونه درېږئ، مګر داسې بندګان ډېر لږ دي.

وَیَقُوۡلُوۡنَ مَتٰی هٰذَا الۡوَعۡدُ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِیۡنَ ﴿۲۵﴾

او وایي دغه (کفّار مؤمنانو ته په تمسخُر سره) کله به وي دا وعده (د حشر) که چېرې یئ تاسې صادقان رښتیني (په دغه ویلو کې؟)، نو مونږ پوه کړه په زمانه د راتلو د قیامت).

**تفسیر:** یعنې مونږ او تاسې به کله ټولېږو؟ او د الله تعالی په حضور ټول کله سره ځو؟ او قیامت به کله وي؟ او ژر یې راښکاره کړه !.

قُلۡ اِنَّمَا الۡعِلۡمُ عِنۡدَ اللّٰهِ ۪ وَاِنَّمَاۤ اَنَا نَذِیۡرٌ مُّبِیۡنٌ ﴿۲۶﴾

ووایه (ای محمده ! دغو منکرانو ته) بېشکه د دې خبرې (چې قیامت کله قائمېږي؟) علم په نزد د الله دی، او بېشکه (خبره دا ده چې) زه ویروونکی یم ښکاره.

**تفسیر:** یعنې د قیامت وخت او مهال زه ټاکلی نه شم، د هغه علم له الله تعالی سره دی، هر هغه شی چې په یقین سره راتلونکی دی؛ له هغې څنې پوهول او د هغه له ویروونکي مستقبل څنې ډارول ځما فرضي کار دی، چې زه یې اداء کوم.

فَلَمَّا رَاَوۡهُ زُلۡفَةً سِیۡٓـَٔتۡ وُجُوۡهُ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا وَقِیۡلَ هٰذَا الَّذِیۡ كُنۡتُمۡ بِهٖ تَدَّعُوۡنَ ﴿۲۷﴾

پس کله چې ووینې دوی هغه (عذاب قیامت) ډېر نژدې؛ نو بد شکله تور به شي مخونه د هغو (کسانو) چې کافران شوي دي، او وبه ویل شي (دوی ته): دا همغه (عذاب) دی چې وئ به تاسو چې دغه مو (ژر) غوښتلو (په دنیا کې).

**تفسیر:** یعنې اوس خو د هغه د راتګ په نسبت شور لګوي، خو کله چې هغه ټاکلی وخت ورنژدې شي؛ د ډېرو لویو باغیانو خولې به چینګی پاتې کیږي، او په ویجاړو مخونو بدو اشکالو او وچو شونډو به هک پک اریان په رډو سترګو ورته ګوري، او هیڅ به یې له لاسه نه وي پوره.

قُلۡ اَرَءَیۡتُمۡ اِنۡ اَهۡلَكَنِیَ اللّٰهُ وَمَنۡ مَّعِیَ اَوۡ رَحِمَنَا ۙ فَمَنۡ یُّجِیۡرُ الۡكٰفِرِیۡنَ مِنۡ عَذَابٍ اَلِیۡمٍ ﴿۲۸﴾

ووایه (ای محمده ! دغو منکرانو ته) آیا وینئ خبر راکړئ تاسې ماته ! که چېرې هلاک مې کړي الله او هغه څوک چې ځما سره دي (لکه چې تاسې د دې قصد کړی دی)، یا رحم وکړي (الله) پر مونږ باندې په طول د عمر؛ پس څوک دی چې وبه ژغوري خلاص به کړي کافران له عذابه دردناکه څخه.

**تفسیر:** کفّارو به تمنّا کوله چې که محمد صلی الله علیه وسلم ژر مړ شي؛ نو دا قصه به پای ته ورسیږي (العیاذ بالله)، د هغه ځواب داسې ورکوي چې: فرض یې کړئ ! که سم د ستاسې له اټکله محمد صلی الله علیه وسلم او د ده ملګري رضي الله تعالی عنهم مړه شي، یا سم ځمونږ د مسلمانانو له عقیدې سره محمد صلی الله علیه وسلم او د ده ملګري د الله تعالی په رحمت بریالیان او مراد موندونکي شي؛ نو په دې دواړو صورتونو کې هر یو چې وي، له هغې ځنې تاسې ته هیڅ یوه ګټه او فائده نه رسیږي، ځمونږ انجام په دنیا هر څه چې وي خو آخرت مو ډېر ښه دی، ځکه چې مونږ په دې لارې کې جداوجهد کوو، لیکن تاسې د خپلو ځانونو فکر وکړئ ! چې په دې کفر او سرکشی سره تاسې به له هغه درد رسوونکي عذاب څخه چې راتلونکی دی څوک وژغوري؟ ځمونږ فکر او اندېښنه پرېږدئ، پخپل فکر کې ولوېږئ !، ولې چې کافران په هیڅ ډول د الله تعالی له عذابه ژغورېدونکي نه دي.

قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ اٰمَنَّا بِهٖ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا ۚ

ووایه (ای محمده دغو منکرانو ته ! الله) رحمان دی چې ایمان مو راوړی دی پر هغه (رحمان) باندې، او پر همغه (رحمان) باندې توکل کړی دی مونږ (په ټولو کارونو خپلو کې).

**تفسیر:** یعنې څنګه چې ځمونږ ایمان په هغه الله تعالی باندې دی؛ نو د هغه په مرسته ځمونږ ژغورنه یقیني ده، او کله چې مونږ په صحیحې معنی سره پر هغه الله تعالی باندې اسره او توکل لرو؛ په ګردو مقاصدو کې مو بری او کامیابي یقیني ده.

فَسَتَعْلَمُوْنَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۹﴾

نو ژر به پوه شئ تاسې (په وخت د لیدلو د عذاب کې) چې څوک دی هغه (چې لوېدلی دی) په ګمراهي ښکاره کې (له مؤمنانو او کافرانو).

**تفسیر:** یعنې مونږ مؤمنان داسې یو چې ستاسې ګمان دی، یا تاسې منکران همغسې یئ چې ځمونږ عقیده ده.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ مَآؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّاْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ﴿۳۰﴾

ووایه (ای محمده دغو منکرانو ته) آیا وینئ خبر راکړئ تاسې ماته: که چېرې ګهیځ وګرځي اوبه ستاسې ښکته (په ځمکه کې ننوتلې ورکې)؛ نو څوک دی هغه چې راولي تاسې ته اوبه روانې شفافې پاکې صافې؟.

**تفسیر:** یعنې د مړینې او ژوندون ګرد اسباب د هغه الله تعالی په لاس کې دي، یوه اوبه د مثال په ډول واخلئ، چې په هغه باندې هر شی ژوندی دی، فرض یې کړئ که د چینو، ویالو، کوهي او نورو اوبه وچې شي، او د ځمکې لاندنې عُمق او تل ته ورښکته شي، لکه چې زیاتره د تودوخې په موسم کې پېښیږي؛ نو د چا له لاسه به پوره وي چې لکه مرغلرې غوندې جاري، پاکې، رڼې او صافې اوبه په زیاته اندازه سره راپیدا کړي، چې ستاسې ژوندون او بقا لره کافي وي، نو ځکه یو متوکل مؤمن لره ښایي چې په هغه خالق الکل مالك علی الاطلاق باندې هیله (امید) او اسره ولري.

تمّت سورة الملك بفضل الله وکرمه ومنّه.

# سُورَةُ الْقَلَم

«د (القلم) سورت مكّي دى، پرته (علاوه) له (١٧) آيته تر (٣٣) آيت پورې، او له (٤٨) آيت څخه تر (٥٠) آيت پورې چې مدني دي، (٥٢) آيتونه او دوه ركوع لري، په تلاوت كې (٦٨) او په نزول كې دويم سورت دى، وروسته د «العلق» له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ۝١ مَآ اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ۝٢

قسم دى په قلم او په هغه څه چې دوى يې ليكي. چې نه يې ته (اى محمده !) په نعمت (فضل انعام) د رب خپل سره لېونى.

**تفسير:** د مكي مشركانو پيغمبر ته (العياذ بالله) لېونى ويل، ځينو به ويل چې: په دوى باندې د شيطان اثر لوېدلى دى، چې داسې يو ناخاپه له ګرد كور كهول او ټبر څخه جلا شوې، داسې عجيبې خبرې كوې چې هيڅوك يې نشي منلى، حق تعالى د دې باطل خيال ترديد او د خپل پيغمبر تسلي وفرمايله، يعنې پر هغه چا باندې چې د الله تعالى دومره لوى فضل او انعام شوى دى، چې د هغه مشاهده هر ليدونكى په ښه شان سره كولى شي، مثلاً اعلى درجې فصاحت، د حكمت او د پوهنې خبرو يې د مخالفينو او موافقينو په زړونو كې ډېر قوي تأثير اچولى دى، او سره د داسې لوړې رشې (خوى) او ښو اخلاقو دوى ته لېونى ويل پخپله د ويونكي لېونتوب نه دى؟.

وَاِنَّ لَكَ لَاَجْرًا غَيْرَ مَمْنُوْنٍ ۝٣

او بېشكه چې دى خاص تا لره خامخا اجر بدل ثواب بې انتهاء.

**تفسير:** يعني تاسې مه خپه كېږئ، د دوى له دې لېوني بللو څخه ستاسې اجر او ثواب زياتيږي، او ستاسې غير محدود هدايت انساني بني نوعو ته رسېدونكى دى، او د هغو د بې انتهاء ثواب تاسې ته رسېدونكى دى، آيا د لېونيانو او پاګلانو مستقبل به هسې روڼ او شاندار او پايدار وي؟ لكه چې ستاسې دى.

وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ ۝٤

او بېشكه چې يې ته (اى محمده) هرومرو په خلق خويونو (دين) ډېر لوى باندې.

**تفسير:** يعنې په هغو اعلى اخلاقو او ملكاتو سره چې د الله تعالى له جانبه تاسې ستايلي شوي يئ، كله په لېونيانو كې د هسې ښو خويونو تصوّر كاوه شي؟ د يوه لېوني په خبرو اترو، كار روزګار كې هيڅكله د نظم او ترتيب اثر نه ليدل كيږي، او نه خبرې يې پر چارو باندې منطبقې وي، او حال دا دى چې ستاسې په مباركه ژبه باندې پاك قرآن چليږي، او ستا ښه اعمال افعال او اخلاق د هغه بې غږه تفسير دى.

فَسَتُبْصِرُ وَيُبْصِرُوْنَ ۝٥ بِاَيِّكُمُ الْمَفْتُوْنُ ۝٦

پس ژر به ووينې ته (اى محمده !) او وبه ويني دغه (منكران هم). چې په كوم يوه له تاسو څخه لېونتوب دى.

**تفسير:** يعنې په زړه کې يخوا له دې نه ټول ښه پوهېدل، ليکن عنقريب دواړو ته به په کتنه سره هم ورښکاره شي، چې د دوی په منځ کې کوم هوښيار، عاقبت انديش او په وروستنی انديښنه کې وو؟ او کوم سړی ناپوه او بې سده وو؟ چې د هغه لامله يې لکه لېونيان چټې چټې خبرې کولې.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَن ضَلَّ عَن سَبِيلِهِۦ وَهُوَ أَعْلَمُ بِٱلْمُهْتَدِينَ ⑦

بېشکه رب ستا چې دی همغه ته ډېر ښه معلوم دی هغه څوک چې ګمراه شوی دی له لارې د ده څخه، او همغه (الله) ته ښه معلوم دي لار موندونکي (چې مؤمنان دي).

تفسير: يعنې پوره علم خو له الله تعالی سره دی، چې کوم يو په کومه لاره راتلونکی دی؟ او کوم يو له لارې څنې چپ درومي؟ ليکن نتائج ګردو ته ښکاره دي، او ټول به سره پوهيږي چې څوک بريالي دي، او څوک د شيطان په لمسون پاتې او نامراد شوي دي.

فَلَا تُطِعِ ٱلْمُكَذِّبِينَ ⑧ وَدُّوا۟ لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ ⑨

نو ته مه منه (خبره) د دروغجن ګڼونکو. خوښوي دوی چې که ته نرمي کوې (له دوی سره) نو دوی به هم نرمي کوي (له تا سره).

**تفسير:** يعنې په لار راتلونکي او بې لارې ګرد د الله تعالی په محيط علم کې ټاکلی شوي دي، نو ځکه د دعوت او د تبليغ په معامله کې د مخ اړولو او د رعايت دومره ضرورت نشته، څوک چې د لار موندلو وړ (قابل) وي؛ هغه هرومرو لار مومي، او هغه چې ازلي محروم وي؛ هغه په هيڅ لحاظ او مروت سره منونکي نه وي، د مکې کافرانو به څمونږ پيغمبر ته ويل چې: تاسې د بت پرستۍ په نسبت خپله دا سخته رويه ترکه کړئ !، او څمونږ د معبودانو بيخي ترديد مه کوئ، تر څو مونږ هم ستا د الله تعظيم وکړو، او ستاسې د طور، طريق، مسلک، مشرب او له دين سره متعرض نه شو، نو ځکه حق تعالی تنبيه ورته وفرمايله چې تاسې د دې دروغجنانو خبرو ته غوږ مه ږدئ !، د دوی مقصد دا دی چې تاسې د کفر په نسبت پاسته اوسئ !، ايمان راوړل او صداقت منل د هغوی مقصد نه دی، او ستاسې د بعثت اصلي مقصد په دې ډول سره په لاس نه راځي، تاسې د هر لوري څنې ستر ګې واړوئ، او خپله وظيفه او فرض اداء کړئ، تاسې د دې خبرې ذمه وار او اجاره دار نه يئ، چې څوک يې مني؟ که يې نه مني.

وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ⑩

او ته خبره مه منه د هر ډېر قسم خوړونکي سپک.

**تفسير:** يعنې د چا په زړه کې چې د الله تعالی د نامه عظمت نه وي؛ نو د دروغو قسم خوړل هغه ته يوه خوشې خبره ښکاري، کله چې خلق د هغه په خبرو باور نه کوي، نو ځکه د هغو د يقين راوړلو لپاره څو څو ځلې قسمونه خوري، او ځان په دې وسيلې سره ذليل او بې قدره کوي.

هَمَّازٍ مَّشَّآءٍۭ بِنَمِيمٍ ⑪ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ⑫ عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ⑬

عيب ويونکی تلونکی په چغلی سره. منع کوونکی د خيره له حده تېرېدونکی (په ظلم کې) ډېر ګنهګار. بد خوی سخت ويونکی وروسته له دې ټولو عيبو حرام زاده.

تفسیر: یعنې سره د دې خصلتونو بدنام او بد انجام او د خاص او عام رسوا هم وي، شاه صاحب (رحمه الله) لیکي چې: «دا ګرد د کافرانو وصف دی، سړی دې دننه خپل ځان ته ګوري، که چېرې هسې کوم خصلت په کې وي؛ هغه دې پرېږدي !».

تنبیه: د «زَنیم» معنی د ځینو اسلافو په نزد ولد الزنا او حرامزاده دی، د هغه کافر په نسبت چې دا آیت نازل شوی دی، هغه هم داسې وو، چې «ولید بن مغیره» نومیده، او د مکې معظمې یو لوی مشر سړی او د اسلام سخت دښمن وو.

اَنۡ كَانَ ذَا مَالٍ وَّ بَنِيۡنَ ﴿۱۴﴾

په سبب د دې چې دی وو خاوند د مال او د ځامنو.

تفسیر: یعنې که یو سړی په دنیا کې طالعمن او خوش قسمت وي، لکه چې مال دولت ځامن او شته ولري؛ نو یواځې په دې سره د دې وړ نه دی چې د هغه هره خبره ومنله شي، اصلي شی په انسان کې شرافت، نجابت او ښه اخلاق دي، څوک چې شرافت او ښه اخلاق نه لري؛ ښو مسلمانانو لره نه ښايي چې د هغه خبرې ته غوږ وباسي، یا یې په غولوونکیو چارو باندې تېروځي.

اِذَا تُتۡلٰى عَلَيۡهِ اٰيٰتُنَا قَالَ اَسَاطِيۡرُ الۡاَوَّلِيۡنَ ﴿۱۵﴾

کله چې ولوستل شي په ده باندې آیتونه (د قرآن) ځمونږ؛ نو وايي دا قصې نقلونه دي د پخوانیو (خلقو).

تفسیر: یعنې د الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُهٗ خبرې په داسې ویناوو سره دروغ ګڼي.

سَنَسِمُهٗ عَلَى الۡخُرۡطُوۡمِ ﴿۱۶﴾

ژر دی چې داغ به کېږدو ده لره په پوزه (خلتم) باندې (تحقيرًا).

تفسیر: وايي: «ولید بن مغیرة» د قریشو یو سردار وو، چې په هغه کې دا ګرد اوصاف مجتمع وو، پر پوزه او خلتم باندې یې له داغ ورکولو څخه د هغه رسوايي مختوروالی او سپکتیا مراده ده، ښايي چې په دنیا کې په حسّي ډول کوم داغ په ده باندې هم لوېدلی وي، یا به په آخرت کې ورباندې وخیژي.

اِنَّا بَلَوۡنٰهُمۡ كَمَا بَلَوۡنَاۤ اَصۡحٰبَ الۡجَنَّةِ ۚ

بېشکه مونږ ومو ازمویل دغه (مکیّان په قحط سره) لکه چې ازمویلي وو مونږ خاوندان د باغ.

تفسیر: یعنې د مال او د اولاد زیادت د کوم مقبولیت علامت او نښه نه ده، او د الله تعالی په نزد د هسې شیانو څه قدر او قیمت نشته، نو ځکه نه ښايي چې د مکې کافران په دې شیانو باندې مغرور شي، دا خو د الله تعالی له لوري هغوی ته د ازمویني لپاره ورکړی شوي دي، لکه چې د پخوانیو خلقو ازموینه هم پرې شوې ده.

اِذۡ اَقۡسَمُوۡا لَيَصۡرِمُنَّهَا مُصۡبِحِيۡنَ ﴿۱۷﴾ وَلَا يَسۡتَثۡنُوۡنَ ﴿۱۸﴾

کله چې قسمونه وخوړل دوی ټولو چې هرومرو پرې به کړو مېوې د هغه باغ په اول وخت د صباح کې. او استثنا یې ونه کړه، إن شاء الله یې ونه ویل.

**تفسیر:** څو ورونه وو چې هغو ته له پلاره په ترکه کې یو مېوه دار باغ پاتې شوی وو، چې په هغه کې کر هم کېده، او ګرده کورنۍ د هغه له حاصلاتو څخه خوشاله وه، د پلار په زمانه کې داسې عادت وو، په هغه ورځ کې چې به د باغ مېوې ټولېدې، یا کښت (فصل) رېبل کېده؛ نو د ښار ګرد فقیران او اړ سړي به هم هلته ټولېدل، او دې ګردو ته به د هغو مېوو او کښتو څخه لږ او ډېر ورکول کېدل، او په همدې خیر او خیرات سره په هغه باغ کې لویه ګټه او برکت وو، د هغه له مړه کېدلو څخه وروسته د ده د ځامنو په فکر کې دا خبره وروګرځېده: دومره مېوه او کښت چې فقیران له مونږ څخه وړي، که دا ګرد مونږ پخپله سره ټول کړو؛ نو مونږ ته به له هغه څخه ډېرې ګټې راورسېږي، ولې داسې یو تدبیر به وکړو چې فقراء او نورو ته هیڅ ونه رسېږي، او ګرد حاصلات څمونږ کورونو ته راشي، نو پخپلو منځونو کې یې سره مشوره وکړه، او دا یې سره غوټه کړه، چې سهار د وخته باغ ته ځو، او خپلې مېوې ټولوو، چې فقیران او نور کسان پرې خبر نه شي، دوی دا تدبیر داسې سره غوټه کړ، إن شاء الله تعالی یې هم په کې ونه ویل.

فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ مِّن رَّبِّكَ وَهُمْ نَآئِمُونَ ﴿١٩﴾ فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ ﴿٢٠﴾

پس نازله شوه پر دغه (باغ) یوه طواف کوونکې (بلاء ـ سوځونکی اور) په شپه کې له (طرفه د) رب ستا، حال دا چې دوی اوده وو. پس تر ګهیځ (سحر وختي) پورې وګرځېد (هغه باغ لکه بېخه) رېبلی شوی کښت، یا تک تور لکه توره شپه.

**تفسیر:** یعنې د شپې له مخې سخته سیلۍ راوالوته، یا اور ولګېد، یا بل کوم آفت پرې نازل شو، او ګرد کښت او باغ له کاره ووت، او تک تور وګرځېد.

فَتَنَادَوْا مُصْبِحِينَ ﴿٢١﴾ أَنِ اغْدُوا عَلَىٰ حَرْثِكُمْ إِن كُنتُمْ صَارِمِينَ ﴿٢٢﴾ فَانطَلَقُوا وَهُمْ يَتَخَافَتُونَ ﴿٢٣﴾ أَن لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُم مِّسْكِينٌ ﴿٢٤﴾ وَغَدَوْا عَلَىٰ حَرْدٍ قَادِرِينَ ﴿٢٥﴾

بیا یې یو بل ته ورغږ کړل په وخت د صباح کې. (داسې) چې صباح له وخته ورشئ کښتو خپلو ته که چېرې یئ تاسې پرې کوونکي (د مېوې، لو کوونکي د کښت ـ فصل). نو لاړل دوی او دوی پخپلو منځونو کې پټې خبرې سره کولې. (داسې) چې داخل نه شي هرومرو هغه (باغ ته) نن ورځ پر تاسې باندې هیڅ مسکین محتاج اړ مجبور سړی. او سهار لاړل په منع د فقیرانو سره (باغ ته) حال دا چې قادر وو (په منع د فقیرانو په زعم خپل).

**تفسیر:** یعنې په دې یقین او باور سره وخوځېدل چې اوس به درومي او ګرد کښت او د باغ حاصلات به په لاس راولي.

فَلَمَّا رَأَوْهَا قَالُوا إِنَّا لَضَالُّونَ ﴿٢٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُومُونَ ﴿٢٧﴾

بیا هر کله چې ویې لید هغه (باغ تک تور سوځېدلی)؛ ویې ویل: بېشکه مونږ خامخا لاره ورکه کړې ده (د خپل باغ). بلکه مونږ پخپله محرومه بې برخې شوي یو (له حاصلاتو په سبب د منعې د فقراوو).

**تفسیر:** هغه څمکه او باغ داسې ډاګ ډبر شوی وو چې دوی هلته ورسېدل، هغه یې نشو پېژندلی، او داسې یې وګڼل چې لار یې ورکه کړې ده، او بل کوم لوري ته وتلي دي، نو بیا چې ښه ورته ځیر شول، او غور یې وکړ؛ وپوهېدل چې ځای خو همغه دی چې دوی ورته راغلي دي، مګر دوی له هغه څخه بې برخې او بې نصیبه دي، او د الله تعالی له درباره محروم شوي دي.

قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ ﴿٢٨﴾

وویل منځني بهتر د دوی (په عقل کې): آیا ما نه وو ویلي تاسې ته: ولې په پاکۍ نه یادوئ تاسې الله، او توبه نه وباسئ له منع د فقیرانو؟ (یا ولې نه وایئ: إن شاء الله تعالی).

**تفسیر:** د دوی په منځ کې منځني ورور ډېر پوه او هوښیار وو، ده د مشورې په وخت هغوی ته تنبیه ورکړې وه، او دا خبره یې ورته ویلې وه چې وګورئ ورونو ! الله تعالی مه هېروئ !، ځکه چې دا ټول د هغه احسان او انعام دی، نو تاسې هم له فقیرانو او مسکینانو څخه هغه مه منع کوئ !، کله چې چا د ده خبرې ته غوږ کېښنود؛ نو دی هم چپ شو، او په پټه خوله هغوی سره ملګری شو، څرنګه چې دا خرابي یې ولیده؛ نو ژر یې هغه خبره بیا ور په یاد کړه.

قَالُوا سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٢٩﴾ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ ﴿٣٠﴾

وویل دوی: پاکي ده رب څمونږ لره، بېشکه مونږ وو ټپخپله ظالمان (په منع د فقراوو کې)، بیا مخ واړاوه ځینې د دوی پر ځینو نورو باندې چې یو بل به یې ملامتوه.

**تفسیر:** اوس یې پخپل تقصیر باندې اعتراف وکړ، او ګردو د الله په لوري مخ واړاوه، او لکه چې د عمومي مصیبت د وخت قاعده ده؛ یو په بل باندې یې الزام لګولو او درګرده به یې یو بل د دې مصیبت سبب او عامل وشمېره.

قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا كُنَّا طَاغِينَ ﴿٣١﴾ عَسَىٰ رَبُّنَا أَن يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَا إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا رَاغِبُونَ ﴿٣٢﴾

وویل دوی: ای هلاک افسوس خرابي ده مونږ لره، بېشکه مونږ وو له حده تېرېدونکي. ښایي چې رب څمونږ بدل راکړي مونږ لره خیر غوره له دې (باغچې) څخه، بېشکه مونږ رب خپل ته رغبت کوونکي یو.

**تفسیر:** په پای کې ټول سره یو ځای شول، ویې ویل: چې په رښتیا سره مونږ ګرم او ملامت یو، ځکه چې مونږ د فقیرانو او غریبانو د برخې د خوړلو په قصد وتلي وو، او د حرص او طمع لامله مو اصلي ګټه هم له لاسه ووتله، دا څه خرابي چې مونږ ته رارسېدلې دي؛ د هغو ذمه وار مونږ پخپله یو، مګر اوس هم مونږ له الله تعالی څخه بې هیلې او نا امیده نه یو، او د هغه له مهربانۍ او لورینې څخه دا خبره لرې نه ګڼو، چې هغه له خپل فضل او رحمت څخه مونږ ته له هغه پخواني باغ څخه یو بل ښه باغ را په برخه کړي.

كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ ۖ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٣٣﴾

همداسې (راځي آفت ـ عذاب په دنیا کې مخالفانو ته له حکمه د رب) او خامخا عذاب آفت د آخرت ډېر لوی دی، که چېرې وی دوی چې پوهېدلی (په سختی د عذاب د آخرت؛ نو مخالفت به یې نه وو کړی).

**تفسیر:** یعنې دا خو د دنیا د عذاب یوه وړوکې نمونه وه، چې هیڅ یې مخه نشوه نیولی، نو د آخرت د خورا لوی عذاب مخه به څوک ونیولی شي، که پوه وی؛ نو ښایي چې سړی په دې خبره باندې ښه وپوهیږي.

إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٣٤﴾

بېشکه وېرېدونکیو (له الله ځان، ساتونکیو له معاصیو) ته په نزد د رب د دوی جنّتونه ډک له نعمتونو دي.

**تفسير:** يعنې د دنيا باغ او بهار پسې دومره زيات ولې لويدلي يئ، د جنّت باغونه له دې ځنې په څو څو درجو لوړ (اوچت) او غوره دي.

أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِينَ كَالْمُجْرِمِينَ ﴿٣٥﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿٣٦﴾

آيا پس وبه ګرځوو مونږ مسلمانان (حکم منونکي) په شان د مجرمانو ګنهګارانو (په خلاصي او ثواب کې؟، بلکه نه يې ګرځوو). څه شوي دي تاسې ته، څرنګه حکم کوئ تاسې؟.

**تفسير:** يعنې د مکّې کفّارو د غرور او تکبّر له مخې پخپلو زړونو کې داسې تړاکلي وو: «که د قيامت په ورځ پر مسلمانانو باندې عنايت او ښېنه وشي؛ نو پر مونږ باندې به له هغه څخه ښه او زياته مرحمت کيږي»، او لکه چې په دنيا کې مونږ په آرامۍ او هوسايۍ کې يو، هلته به هم له مونږ سره همداسې معامله کيږي، نو دلته داسې فرمايي چې: دا به څرنګه کېدی شي؟ که داسې وشي؛ نو د دې مطلب به داسې وي چې د يوه وفا لرونکي غلام چې تل د خپل بادار د حکم منلو لپاره تيار ولاړ وي، او د يوه بدکار او باغي سړي انجام به سره يو شانته وي، بلکه هغه بدکار به له وفادار ځنې ښه وي، دا هغه خبره ده چې سليم عقل او صحيح فطرت يې هيڅ نشي منلی.

أَمْ لَكُمْ كِتَٰبٌ فِيهِ تَدْرُسُونَ ﴿٣٧﴾ إِنَّ لَكُمْ فِيهِ لَمَا تَخَيَّرُونَ ﴿٣٨﴾ أَمْ لَكُمْ أَيْمَٰنٌ عَلَيْنَا بَٰلِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَٰمَةِ ۙ إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ ﴿٣٩﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُم بِذَٰلِكَ زَعِيمٌ ﴿٤٠﴾

آيا له تاسې سره شته کوم کتاب چې په هغه (له اسمانه نازل شوی کتاب) کې لولئ تاسې. داسې چې بېشکه تاسې لره دي په هغه (کتاب) کې خامخا هغه څه چې خوښوئ يې تاسې. آيا شته تاسې لره قسمونه پر (وعدو د) مونږ باندې چې رسېدلي وي تر ورځې د قيامت پورې بېشکه چې شته تاسې ته هغه چې پرې حکم کوئ تاسې؟. پوښتنه وکړه له دوی نه چې کوم يو له دوی نه په دغه (حکم چې کوي يې) ضامن ذمه اخيستونکی دی (دوی ته).

**تفسير:** يعنې دا خبره چې مسلم او مجرم سره يو برابر وګڼل شي؛ ښکاره ده چې له عقل او فطرت څخه مخالفه ده، بيا د دې په تأکيد او تأييد کې کوم عقلي دليل هم له تاسې سره شته؟ آيا په کوم معتبر کتاب کې داسې کوم مضمون تاسې لوستی دی چې هر هغه شی چې تاسې يې د خپلو ځانونو لپاره غوره کوئ؛ همغه به تاسې ته درکاوه شي؟ او ستاسې ګردې غوښتنې او په زړه پورې خبرې پوره کېدونکې دي؟ يا به الله تعالی تر قيامت پورې داسې قسم خوړلی وي، چې تاسې هر هغه شی چې پخپلو زړونو کې وتړاکئ؛ همغه به تاسې ته درکاوه شي؟ او همغسې چې اوس تاسې هم په عيش او راحت کې يئ؛ تر قيامت پورې به په همدې حال کې وساتل شئ؟ هغه سړی چې د دوی له منځه داسې دعوی کوي، نو د دې خبرې د ثابتولو ذامه واري ښايي پخپله غاړه ونيسي، رايې وله او مخامخ يې ودروه چې ويې وينو او ويې پوښتو، چې له کومه وايي؟ او څه غرېږي؟.

أَمْ لَهُمْ شُرَكَآءُ فَلْيَأْتُوا۟ بِشُرَكَآئِهِمْ إِن كَانُوا۟ صَٰدِقِينَ ﴿٤١﴾

آيا شته دوی لره شريکان (په دغه دعوی کې په زعم د دوی)؟ نو رادې ولي هغه شريکان خپل که چېرې وي دوی صادقان رښتيني؟ (په دعوی خپله کې).

**تفسير:** يعنې که له هغوی سره هيڅ يو عقلي او نقلي دليل نشته، او يواځې د دروغو بُتانو په نامه داسې ويناوې کوي، چې هغوی به له مونږ سره داسې او هسې کوي، او داسې مرتبې رابښي، ځکه چې هغوی (استغفر الله) په الوهيت کې

برخه لرونکي او مله دي؛ نو په داسې دعوو کې د هغوی رښتینوالی هغه وخت ثابتیږي چې دوی دې شریکانو ته د الله تعالی په مخ کې هم دعوت او بلنه ورکړي، او د هغوی په وسیله دې خپلې په زړه پورې خبرې او چارې پر دوی باندې اجراء کړي.

يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَّيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ ﴿۴۲﴾

(او یاده کړه) هغه ورځ چې بربنډوالی به وکړی شي له پُنډۍ نه، او راوبه بللی شي دغه (کافران) طرف د سجدې کولو ته (لپاره د امتحان) پس توان به یې ونه شي (سجدې کولو ته).

تفسیر: د دې آیت کریمه دوه معناګانې دي:

(۱): «په هغه ورځ چې ښکاره به کړی شي د الله تعالی پنډۍ او الله تعالی به خلک سجدې کولو ته راوبلي، منافقین به سجده نشي کولی» لکه چې امام بُخاري (رحمه الله تعالی) د أبو سعید الخُدريّ رضي الله تعالی عنه څخه نقل کړی چې فرمايي: ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي دي چې: څمونږ رب به خپله پنډۍ ښکاره کړي، نو هر مؤمن سړی او هره مؤمنه ښځه به ورته سجدې وکړي، او هغه څوک به پاتې شي چې په دنیا کې یې د ریا او د شهوت په خاطر سجده کوله، نو وبه غواړي چې سجده وکړي، خو ملا به یې وچه سمه سیخه وګرځي، د سجدې کولو توان به نه لري، نو په دې حدیث کې د الله تعالی د پنډۍ صفت ذکر دی، مونږ پرې ایمان لرو، لکه څرنګه چې واجب دي، کیفیت یا تشبیه بیانول یې د مخلوقاتو د صفتونو سره ناروا دي، همدا راز معنی بدلول او تأویل کول په کې باطل دي، لکه څرنګک چې مونږ د الله تعالی د نورو صفتونو په کیفیت باندې نه پوهیږو هم دا راز د الله تعالی دا صفت هم داسي دي چې‌ې خیالات او فکرونه کول پکې هیڅ قسم ځای نه لري.

(۲): «په هغه ورځ چې سختي به ښکاره شي، سخت حالات به راشي، او منافقان به د سجدې کولو توان نه لري»، چې دا تفسیر د عبد الله بن عبّاس رضي الله تعالی عنهما او د ځینې تابعینو څخه نقل شوی دی.

خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ

حال دا چې ذلیلې ښکته به وي (له شرمه) سترګې د دوی.

تفسیر: یعنې د ندامت او شرمندګۍ لامله به یې سترګې ټیټې وي، او نه یې شي پورته کولی.

تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ وَقَدْ كَانُوْا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُوْدِ وَهُمْ سٰلِمُوْنَ ﴿۴۳﴾

راګېر کړي به وي دوی ذلت خواري، او بېشکه وو دوی (په دنیا کې) چې بلل کېدل دوی طرف د سجدې ته او دوی به وو روغ رمټ (نو سجده به یې نه کوله).

تفسیر: یعنې په دنیا کې هغوی ته د سجدې حکم ورکړی شوی وو، کله چې دوی روغ رمټ وو، او پخپل واک یې سجدې کولی شوې، هلته دوی په اخلاص سره هیڅ سجده ونه کړه، د هغه اثر داسې شو چې استعداد یې باطل شو، اوس که غواړي چې سجده وکړي؛ نه یې شي کولی.

فَذَرْنِيْ وَمَنْ يُّكَذِّبُ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ ۖ سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِّنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۴۴﴾

نو پرېږده ما او هغه څوک چې دروغ وايي په دې خبرې (قرآن) باندې، ژر ده چې وبه نیسو مونږ دوی ورو ورو (او نژدې به یې کړو عذاب ته) له هغه ځایه چې دوی نه دي پرې پوه.

**تفسير:** يعني د هغوی په عذاب کې لو ېدل يقيني دي، خو د دوی د دې څو ورځني توقف او د عذاب د ډيل په نسبت تاسې مه خپه کېږئ، او د هغوی معامله ماته پرېږدئ، زه به پخپله د هغوی چاره وکړم، او داسې په ورو ورو او په تدريج سره به يې دوزخ ته بوځم، او زينه په زينه به راښکته کړو دوی، او ورو ورو به نژدې کړو دوی عذاب ته چې هغوی په ځان هم خبر نشي، دوی به پخپلو ځُرتو کې ډوب تللي وي، خو د دوی بنسټونه له بېخه خېژي.

وَ أُمۡلِيۡ لَهُمۡ ؕ اِنَّ كَيۡدِيۡ مَتِيۡنٌ ﴿۴۵﴾

او ټال ورکوم دوی ته (په دنيا کې) بېشکه ځما چال کلک دی.

اَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ اَجۡرًا فَهُمۡ مِّنۡ مَّغۡرَمٍ مُّثۡقَلُوۡنَ ﴿۴۶﴾ اَمۡ عِنۡدَهُمُ الۡغَيۡبُ فَهُمۡ يَكۡتُبُوۡنَ ﴿۴۷﴾

آيا ته غواړې له دوی ځنې (په تبليغ د رسالت) څه اجر مزدوري؟ نو دوی د هغه له زيان تاوان څخه درووند بار کړی شوي دي (نو ځکه مخ درڅخه اړوي؟ بلکه نه يې غواړې). آيا شته په نزد د دوی پټه خبره علم الغيب، پس دوی يې ليکي؟ (له هغه څخه دغه حکم د برابری د مؤمن او د کافر).

**تفسير:** يعني افسوس او د تعجّب ځای دی، چې دا خلق داسې د تباهۍ په لوري ورځي، څو ستاسې خبرې نه مني، آخر د دوی د نه منلو سبب څه شی دی؟ آيا تاسې له دوی ځنې کومه معاوضه تنخوا ـ کمېشن ـ او نور څه غواړئ چې د هغه لپاره هغوی ځان ببرته راکاږي؟ يا پخپله له هغوی سره د پټو خبرو څه حال او احوال شته؟ يا د الله تعالی وحي دوی ته راځي؟ او هغوی هغه په ډېر حفاظت سره لکه قرآن غونډې ليکي، نو ځکه ستاسې متابعت ته ځان اړ او مجبور نه بولي، او آخر به څه نه څه په منځ کې وي، کله چې پر هغوی باندې هيڅ يو بار نه اچول کيږي، او له هغه شي څخه دوی مستغني او بې پروا هم نه دي، نو د دوی د دې نه منلو سبب به پر ته له ضده، عناده، انکاره، رخې، او عداوت بل شی کېدی نشي.

فَاصۡبِرۡ لِحُكۡمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُنۡ كَصَاحِبِ الۡحُوۡتِ ۘ اِذۡ نَادٰى وَهُوَ مَكۡظُوۡمٌ ؕ ﴿۴۸﴾

نو صبر کوه حکم د رب خپل ته (په باب د منکرانو کې)، نو مه کېږه ته (په تنگ دلی او تلوار کې) لکه خاوند د ماهي کب (په تنگدلی او تلوار کې) کله يې چې غږ وکړ او دی وو ډک له غم غصې نه.

**تفسير:** يعني د کب په ګېډه کې تلونکي پيغمبر يونس عليه السلام په شان د مکذّبينو په معامله کې تنگدلي او وېره مه ښکاروئ، د دوی قصه پخوا له دې نه په څو څو ځايونو کې لږه لږه تېره شوې ده.

﴿اِذۡ نَادٰى وَهُوَ مَكۡظُوۡمٌ﴾ «کله چې غږ وکړ او دی وو ډک له غم غصې نه»، يعني د قوم له لوري له غصې نه ډک شوی وو، له ډېره قهره يې د عذاب په غوښتلو کې ډېره چالاکي بلکه پېشګويي وکړه.

لَوۡلَاۤ اَنۡ تَدٰرَكَهٗ نِعۡمَةٌ مِّنۡ رَّبِّهٖ لَنُبِذَ بِالۡعَرَآءِ وَهُوَ مَذۡمُوۡمٌ ﴿۴۹﴾

که چېرې نه وی دا چې موندلی وی ده نعمت احسان له لوري د رب د ده؛ نو خامخا به پرېوتی وو دی (له ګېډې د مهي نه) په سپېره ډګر (ميدان) کې، او دی به ملامت کړی شوی وو.

تفسير: يعني د توبې له قبول څخه وروسته كه د الله تعالى زيات فضل او احسان د هغه لاس نيونه نه وى كړې؛ نو په هغه وچ كلك لوى ميدان كې چې د ماهي له ګېډې څخه د باندې لوېدلى همغسې ملزم شوى به پروت وو، او هغه كمالات او كرامات به بيا نه ورته بېنل كېدل، خو يوازې د الله تعالى د فضل او مهربانى لامله د هغه د ابتلاء په وخت كې هم هغه شيان له هغه سره پاتې وو.

فَاجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝٥٠

پس غوره كړ دغه (يونس) لره رب د ده (په نبوّت سره)؛ نو ګرځولى يې وو دى له كاملانو صالحانو انبياوو څخه.

تفسير: يعني بيا يې د هغه نوره رتبه هم لا اوچته كړه، او په اعلى درجه نېكو خلقو كې يې ورداخل كړ، په حديث كې راغلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: «له تاسې څخه دې هيڅ يو داسې نه وايي چې زه د يونس عليه السلام ابن متّى څخه ښه او بهتر يم».

وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ ۝٥١

او بېشكه نژدې وو هغه كسان چې كافران شوي دي چې خامخا وبه ښويوي تا (وبه دې غورځوي په ځمكه) په سترګو خپلو سره هر كله چې واورېده دوى قرآن (ستا له ژبې)، او وايي دوى (د كينې له مخې) بېشكه دغه (محمد) لېونى دى.

تفسير: يعني د قرآنكريم له اورېدلو څخه له غيظ او غضبه خوټكېږي، او په هسې رډو سترګو تاسې ته ګوري چې تاسې پخپلو سترګو سره له ځايه وښويوي، يا خامخا هلاك كړي تا لره، يا دې وغورځوي له مرتبې خپلې نه، او په ژبه سره هم چټې اپلتې خبرې كوي، چې (استغفر الله) دا سړى لېونى شوى دى، او د ده هيڅ يوه خبره (نعوذ بالله) د التفات وړ نه ده، مقصد دا دى چې داسې غواړي چې تاسې وويروي، او د صبر او استقامت له ځايه مو وخوځوي، مګر تاسې همغسې سم پخپل مسلك باندې كلك اوسئ !، او مه زړه تنګه كېږئ، او په هره معامله كې خپل خپګان مه ښكاره كوئ !، او مه چالاكي كوئ !، وېره او مداهنت مه اختياروئ !.

وَمَا هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝٥٢

او حال دا دى چې نه دى دا (قرآن) مګر خو ذكر پند دى ټولو عالميانو لره.

تفسير: يعني په قرآن كې د لېونتوب او جنون خبرې چېرې دي، هغه خو د ګردې نړۍ او نړۍ والانو لپاره د خورا لوى ذكر، پند او د نصيحت لويه ذخيره ده، په دې كې د بني نوع انسان اصلاح او فلاح چارې پرتې دي، او په رښتيا سره همغه سړى لېونى باله شي چې د دې پاك كلام لېونى نه وي، او د زړه په اخلاص سره يې نه مني.

تمّت سورة القلم بفضل الله وكرمه ومنّه.



# سُوۡرَةُ الحَاقَّةِ

«د (الحاقة) سورت مکي دی، (۵۲) آيته (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۶۹) او په نزول کې (۷۸) سورت دی، وروسته د (الملك) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلۡحَآقَّةُ ۝١ مَا الۡحَآقَّةُ ۝٢

هغه (قيامت) حق واقع کېدونکی. څه شی دی هغه حق واقع کېدونکی؟.

**تفسير:** يعنې د قيامت هغه ګړۍ چې د هغې راتلل له ازله د الله تعالی په علم کې ثابت او ټاکلی شوی دی، کله چې حق له باطل څخه بالکل ښکاره او بې له کوم التباس او اشتباه څخه هر شی ښېل او جلا کيږي، او د هغه د ذات په نسبت ګرد جګړه کوونکي هلته مغلوب او مقهور کيږي، نو هلته به وپوهېدی شي چې هغه ګړۍ څه شی ده؟ او څرنګه احوال او کيفيات په هغې کې شته؟.

وَمَآ اَدۡرٰىكَ مَا الۡحَآقَّةُ ۝٣

او څه پوه کړی يې ته چې څه شی دی هغه (قيامت) حق واقع کېدونکی.

**تفسير:** يعنې که هر څومره يو خورا لوی سړی هر څومره فکر ووهي، او خپل چرت او جاج وچلوي، د هغې ورځې د ويروونکې ننداريې او زړه خوځوونکې پېښې منظرې ته يې فهم او ادراک نه وررسيږي.

كَذَّبَتۡ ثَمُوۡدُ وَعَادٌۢ بِالۡقَارِعَةِ ۝٤

دروغ ګڼلی وو ثموديانو او عاديانو (هغه قيامت) ټکوونکي (د زړونو او د غوږونو په سختيو سره).

**تفسير:** يعنې د ثمود او د عاد قومونو دا د قيامت راتلونکې ګړۍ دروغ وبلله، چې هغه به ګرد ځمکه، اسمان، لمر، سپوږمۍ، ستوري، غرونه او سرې ټکوي، او ډېر سخت شيان ترې وړې وړې او ذرې کيږي، بيا وګوره چې د دې دواړو انجام او پای څرنګه شو؟.

فَاَمَّا ثَمُوۡدُ فَاُهۡلِكُوۡا بِالطَّاغِيَةِ ۝٥

پس هر چې ثموديان وو؛ نو هلاك کړل شو (هغوی) په سخت اواز (د جبريل يا په سبب د سرکښۍ خپلې).

**تفسير:** يعنې يوه سخته زلزله له يوه سخت اواز د جبريل عليه السلام سره يو ځای راغله، او ګرد يې سره لاندې باندې کړل يا هلاك شول، ثموديان په سبب د سرکشيو خپلو سره چې د صالح عليه السلام ناقه يې ګوډه او هلاکه کړه.

وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ۝

او هر چې عاديان وو؛ نو هلاک کړی شوي وو (دوی) په باد سخت اواز کوونکي (يا په ډېر سخت له حده تېرېدونکي يخ باد).

تفسير: يعنې هغه باد دومره سخت او شديد وو چې په هغه باندې د هيڅ يوه موجود زور نه رسېده، تر دې حده چې هغو پرښتو له واکه هم د هغه سخت باد اداره کول نه وو پوره، او د هغوی له لاسو ځنې هم الوت، چې د هغه باد په اراده باندې مسلطې او مقررې وې.

سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَّثَمٰنِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا فَتَرَى الْقَوْمَ فِيهَا صَرْعٰى كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ خَاوِيَةٍ ۝ فَهَلْ تَرٰى لَهُمْ مِّنْ بَاقِيَةٍ ۝

مقرر کړی وو (الله) دغه (باد) پر دوی باندې اووه شپې او اته ورځې متواتر پرله پسې برابر، نو ليده به تا هغه قوم (د عاد) په هغه کې لوېدلي (مړه پراته په ځمکه باندې)، ګواکې دوی (له جهت د لويوالي د جثو بېخونه) ډډونه د خرماوو دي (هلاک پرېوتلي په ځمکه باندې). نو آيا وينې ته کوم يو (نفس) له دوی ځنې باقي پاتې شوی (بلکه هيڅ يې نه وينې).

تفسير: يعنې هغه قومونه چې لنګ وهلي د مباحثې او مناقشې ډګر ته راووتي وو، او په لوړو غړونو سره به يې ويل: څوک به وي چې له مونږ ځنې زيات زور ولري؟ هغه ځمونږ له هغه زورور باد او ورښ سره مقابله ونشوه کړی، او ډېر پهلوانان يې د هغه زورور ورښ (باد) د څپېړو په مخ کې داسې کم قوّت او بې سيکه او اوږده غځېدل لکه د خرما لوی ډډونه چې سرونه يې وهلی شوي او له بېخه او بنسټ څخه راويستل شوي وي، نو آيا وينې ته کوم يو له دوی ځنې پاتې شوی؟ بلکه وبه نه وينې يو تن هم له هغوی څخه پاتې شوی، يعنې د هغو قومونو ذريه او نسل پاتې نشو، او د دنيا له مخ څخه بيخي فنا شو.

وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ وَالْمُؤْتَفِكٰتُ بِالْخَاطِئَةِ ۝ فَعَصَوْا رَسُوْلَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ۝

او راغی فرعون او هغه چې پخوا له هغه ځنې وو او (اهل د) کليو چپه (الټه) کړی شويو په ګناهونو سره (چې شرک وو). نو حکم ونه مانه دوی د رسول د رب د دوی، نو (الله) ونيول هغوی په نيولو سختو سره.

تفسير: يعنې وروسته له عاد او ثمود څخه فرعون ډېرې سختې خبرې او تکبّر او ځانمني کولې، او پخوا له هغه څخه نور څو قومونه هم سره له لويو ګناهونو تېر شوي دي، لکه د نوح قوم او د شُعيب قوم او د لوط قوم، چې د هغوی کلي سره له کليوالو د هغو په بل مخ واړول شول، دوی ګردو د خپلو خپلو پيغمبرانو خبرې نه منلې، او د الله تعالی مقابلې ته راوتلي وو، او د الله تعالی له احکامو څخه يې غاړې غړولې، په پای کې د الله تعالی له لوري دوی ګرد په لويو آفتونو سره ککړ شول، او په هسې سختو بلاوو کې اخته شول چې د هغوی ژغورنه له هغه ځنې مشکله وه، هو ! د الله تعالی په مخ کې د هيچا له لاسه هيڅ شی نه دي پوره.

إِنَّا لَمَّا طَغَا الْمَآءُ حَمَلْنٰكُمْ فِى الْجَارِيَةِ ﴿١١﴾ لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَآ أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ ﴿١٢﴾

بېشکه مونږ هر کله چې طغيان وکړ اوبو راپورته شوې په هر شي باندې؛ پورته کړي وو مونږ تاسې په تلونکې بېړۍ (د نوح) باندې. لپاره د دې چې وګرځوو مونږ دا (واقعه) تاسې ته تذکره پند (په نجات د مؤمنانو او غرق د کافرانو)، او په ياد دې ولري (ودې ساتي) دا (نصيحت) غوږونه يادوونکي ساتونکي.

تفسير: يعنې د نوح عليه السلام په زمانه کې کله چې طوفان راغی، نو ښکاره وه چې په هيڅ ډول د هيڅ يو انسان پاتې کېدل او ژغورنه له هغه څخه ممکنه نه وه، او څمونږ قدرت او عام انعام، اکرام او احسان وو چې ګرد منکران مو ډوب کړل، او يواځې نوح عليه السلام او د هغه ملګريو ته مو نجات ورکړ، نو ښه په داسې يوه لوی طوفان کې د هغې وړوکې بېړۍ سلامت پاتې کېدل له توقع او هيلې څخه لوړ کار نه دی؟ او آيا هغه څمونږ د قدرت او حکمت يوه علامه او نښه نه ده؟ تر څو هغه ژغورلي شوي انسانان د هغه لوی طوفان او د خپلې ژغورنې قصې نورو ته وکړي، او په دې ډول سره دا پېښه تر آخره پورې د هر سړي په ياد پاتې وي، نو دغه خبرې د هغو غوږونو له ياده چې کومه معقوله خبره اوري او پرې پوهيږي، او په ياد يې ساتي؛ هيڅکله به نه هيرېږي چې په يوه زمانه کې د الله تعالی له لوري څمونږ پر پلرونو باندې هسې يو لوی احسان شوی دی، او په دې باندې وپوهيږي، لکه چې د دنيا په جګړو او پېښو کې تل فرمانبرداران له نافرمانانو څخه بيليږي؛ همداسې حال به د قيامت په ويروونکي (حاقّة) کې هم کېدونکی وي، وروسته له دې نه بيا الله تعالی أجلّ شأنه وأعظم برهانُه په همدې لوري خپل کلام منتقل کوي.

فَإِذَا نُفِخَ فِى الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿١٣﴾ وَّحُمِلَتِ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ﴿١٤﴾ فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١٥﴾

بيا کله چې پوکی وشي په صور شپېلۍ کې پوکی يو. او پورته کړه شي ځمکه او غرونه (له خپلو ځايونو) نو مات به کړل شي دا دواړه (ټوټې ټوټې) په ماتولو يوه سره. نو په دغه ورځې کې به واقع شي (هغه) واقع کېدونکې (قيامت).

تفسير: يعنې د صور (شپېلۍ) له پوکېدلو سره به سم ځمکه او غرونه له خپل اصلي صورت څخه راووځي، او ګرد سره وړوکې وړوکې ذرې ذرې او بڅرکې بڅرکې کيږي، نو همدا د قيامت د قائمېدلو وخت دی.

وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِىَ يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿١٦﴾ وَّالْمَلَكُ عَلٰٓى أَرْجَآئِهَا

او وبه چوي (څيرې به شي) اسمان، بيا به هغه (اسمان) په دغه ورځ کې سست ضعيف وي. او ملائکې پرښتې به وي په څنډو (غاړو) د هغه (اسمان).

تفسير: يعنې نن ورځ چې اسمان دومره کلک او مضبوط دی، چې سره د لکونو کلونو د تېرېدلو بيا هم هيڅ يو سوری او کنډو په کې نه ليده کيږي، په هغې ورځې کې به شليږي، او ټوټې ټوټې کيږي به، کله چې د هغه د منځنۍ برخې نړېدل شروع کيږي؛ نو پرښتې به د هغه څنډې ته ځي.

وَيَحْمِلُ عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمٰنِيَةٌ ﴿١٧﴾

او پورته به کړي عرش د رب ستا له پاسه د دوی په هغه ورځ کې اته (پرښتې).

تفسير: اوس څلورو پرښتو عظيم عرش راپورته کړی دی، چې د هغه د لويوالي او ارتوالي علم يوازې له پاک پروردګاره سره دی، په هغه ورځ کې له هغوی سره څلور پرښتې نورې هم ملګرې کيږي.

يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُوْنَ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿۱۸﴾

په دغه ورځ کې به تاسې حاضر وړاندې کړل شئ (الله ته سره د حساب)، پټه به نه پاتې کيږي له (اعمالو د) تاسې هيڅ يوه پټه خبره.

تفسير: يعنې په هغه ورځ کې به تاسې د الله تعالى دربار ته راحاضر کړی شئ، او د هيچا هيڅ يوه نيکي او بدي به نه پټيږي، او ګرد عام منظر ته به راښکاره کړی شي.

فَاَمَّا مَنْ اُوْتِيَ كِتٰبَهٗ بِيَمِيْنِهٖ ۙ فَيَقُوْلُ هَآؤُمُ اقْرَءُوْا كِتٰبِيَهْ ﴿۱۹﴾

نو هر هغه څوک چې ورکړ شي کتاب عمل نامه د ده په ښي لاس د ده؛ نو وبه وايي (له خوشالۍ داسې چې) راشئ (واخلئ) او ولولئ تاسې دا څما کتاب عملنامه.

تفسير: يعنې په هغې ورځې کې هره اعمالنامه چې په ښي لاس کې ورکړه شي؛ هغه د نجات او د مقبوليت علامه ده، نو هغه له ډېرې خوښۍ څخې هر سړي ته ورښکاروي او وايي به چې: راځئ څما اعمالنامه ولولئ.

اِنِّيْ ظَنَنْتُ اَنِّيْ مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ ﴿۲۰﴾

بېشکه ما يقين کاوه (په دنيا کې) چې بېشکه زه مخامخ کېدونکی يم له حساب خپل سره.

تفسير: يعنې په دنيا کې يې هسې خيال کاوه چې يوه ورځ به ضرور څما حساب او کتاب اخيست کيږي، نو ځکه زه ويرېدم او د خپل ځان سره مې محاسبه کوله، نن شکر دی چې د هغه په زړه پورې نتيجه وينم، چې د الله جل جلاله په فضل څما حساب بالکل صاف او پاک دی.

فَهُوَ فِيْ عِيْشَةٍ رَّاضِيَةٍ ۙ ﴿۲۱﴾ فِيْ جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۙ ﴿۲۲﴾ قُطُوْفُهَا دَانِيَةٌ ﴿۲۳﴾

نو هغه (شخص) دی په عيش ښه کې (چې دی به پرې راضي وي). په جنّت عالي لوی اوچت کې. چې مېوې به يې ډېرې نژدې وي.

تفسير: چې په ولاړه، ناسته، ملاسته او هر وخت کې په ډېره اسانۍ سره په لاس راځي، او په ښه ډول سره شوکولی کيږي.

كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْٓئًا بِمَآ اَسْلَفْتُمْ فِي الْاَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿۲۴﴾

(ورته وبه ويل شي) خورئ او څښئ په اشتها هضم سره په سبب د هغو عملونو خپلو چې مخکښې ليږلي وو تاسې په ورځو تېرو شويو د دنيا کې.

تفسير: يعنې په دنيا کې تاسې خاص د الله تعالى لپاره د خپلو نفساني او خواهشاتو مخې مو نيولې وې، او د لوږې او تندې ربړونه مو پر ځای اخيستي وو، نن هيڅ يو رنځ او تکليف په تاسې باندې نشته، په ښو مزو او اشتها سره هر شی مو چې زړه غواړي؛ خورئ او څښئ يې !، ځکه چې نه مو طبيعت خفه او نه منغض او نه منقبض کيږي، او نه د بدهضمۍ او د بولو او غائطو او د بلې ناروغۍ انديښنه له تاسو سره شته، او نه مو د دې نعمتونو زوال په تصوّر کې راځي.

وَ اَمَّا مَنۡ اُوۡتِیَ كِتٰبَهٗ بِشِمَالِهٖ ۙ۬ فَیَقُوۡلُ یٰلَیۡتَنِیۡ لَمۡ اُوۡتَ كِتٰبِیَهۡ ﴿۲۵﴾ وَ لَمۡ اَدۡرِ مَا حِسَابِیَهۡ ﴿۲۶﴾
یٰلَیۡتَهَا كَانَتِ الۡقَاضِیَةَ ﴿۲۷﴾ مَاۤ اَغۡنٰی عَنِّیۡ مَالِیَهۡ ﴿۲۸﴾ هَلَكَ عَنِّیۡ سُلۡطٰنِیَهۡ ﴿۲۹﴾

او هر هغه څوک چې ورکړ شي کتاب عملنامه د ده په کيڼ لاس د ده؛ نو وبه وايي (له غمه داسې چې) اى کاشکې نه وى راکړى شوى ماته دا کتاب اعمالنامه ځما. او نه وم پوه شوى زه چې څه دى حساب ځما. اى کاشکې وى (ړومبنى مرګ ځما په دنيا) خلاصوونکى (ځما له دويم حيات). هيڅ دفع ونه کړه له ما ځنې مال ځما. برباد شو له ما ځنې سلطنت حکومت ځما.

تفسير: يعنې د شا له لوري په کيڼ لاس کې د هر چا اعمالنامه چې ورکوله کيږي؛ هغه پوهيږي چې په ما باندې کمبختي راغلې ده، نو په دې وخت کې په ډېر حسرت سره داسې تمنّا کوي چې کاشکې ځما دا أعمالنامه نه وى راکړى شوې، او زه نه خبرېدى چې ځما حساب او کتاب څرنګه دى، کاشکې په مړينې مې دا قصه پاى ته رسېدلې وى، او زه د تل لپاره مړ پروت وى، او له مړينې څخه وروسته مې بيا دا ژوندون نه په برخه کېدى، او که ژوندى کېدم خو بيا زر د مرګي يوه لقمه او نمړى کېدلى ! !، افسوس چې هغه مال، جاه، حکومت او دولت مې هيڅ په کار رانغى، او نن مې د هغو ګردو شيانو هيڅ يو شى په سترګو نه راځي، نه څه دليل او حجّت په لاس لرم، او نه څه عذر او معذرت کولى شم.

(نو الله تعالى أجلّ شأنُهٗ وأعظم برهانُه خازنانو د جحيم ته داسې حکم فرمايي چې):

خُذُوۡهُ فَغُلُّوۡهُ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ الۡجَحِیۡمَ صَلُّوۡهُ ﴿۳۱﴾ ثُمَّ فِیۡ سِلۡسِلَةٍ ذَرۡعُهَا سَبۡعُوۡنَ ذِرَاعًا
فَاسۡلُكُوۡهُ ﴿۳۲﴾

ونيسئ دئ ! پس په ځنځير سره وتړئ دى !. بيا (اور د) دوزخ ته وغورځوئ دى !. بيا په يوه ځنځير کې چې ګزونه د هغه اويا ګزه وي پس ننه باسئ دى (په دوزخ کې) !.

تفسير: پربنتو ته به حکم کيږي چې هغه ونيسئ !، او غاړکى يې په غاړه ورواچوئ !، او په اور کې يې غوپه کړئ !، او په هغه ځنځير کې يې چې اوږدوالى يې اويا ګزه دى وتړئ !، تر څو د سوځېدلو په وخت کې هيڅ ونه خوځېدى شي، ځکه چې د دې خوا او هغې خوا له خوځېدلو ځنې سوځېدونکى لږ څه تخفيف حس کولى شي.

تنبيه: له ګز ځنې د هغه ځاى ګز مراد دى، چې د هغه اندازه هم الله ته معلومه ده.

اِنَّهٗ كَانَ لَا یُؤۡمِنُ بِاللّٰهِ الۡعَظِیۡمِ ﴿۳۳﴾ وَ لَا یَحُضُّ عَلٰی طَعَامِ الۡمِسۡكِیۡنِ ﴿۳۴﴾

بېشکه دى وو (په دنيا کې) چې ايمان يې نه راووړ په الله لوى باندې. او تأکيد تېزوالى به يې نه کاوه په طعام ډوډۍ ورکولو د مسکينانو محتاجانو باندې.

تفسير: يعنې چې په دې دنيا کې اوسېده، نه يې د الله تعالى حق پېژنده، او نه يې د بندګانو د حقوقو ساتنه کوله، د فقيرانو او د محتاجانو لاس نيونه او ګرو ېرنه (تپوس) چېرې، حتّى نورو ته يې هم په دې مورد کې څه تشويق او ترغيب ورنه کړ، بيا په الله تعالى باندې همغسې چې ښايي؛ ايمان يې رانه ووړ، نو نجات به چېرې وي؟.

فَلَیۡسَ لَهُ الۡیَوۡمَ هٰهُنَا حَمِیۡمٌ ﴿۳۵﴾

نو نشته ده ته نن ورځ په دې ځاى کې کوم دوست (دافع د عذاب).

تفسیر: یعنې لکه چې هغه الله تعالی یې خپل دوست نه کړ؛ نو نن به د هغه دوست څوک شي چې د ده حمایت وکړي؟ او دی له عذابه وژغوري؟ یا د مصیبت په وخت کې تسلي ورکړي؟.

وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ غِسْلِينٍ ﴿٣٦﴾ لَا يَأْكُلُهُ إِلَّا الْخَاطِئُونَ ﴿٣٧﴾

او نشته هیڅ طعام (چې ویې خوري) مګر خو (د دوزخیانو د زخمونو) له وینو او زوو څخه. چې نه خوري دغه (غسلین) مګر همغه خطاکاران ګنهګاران (یې خوري).

تفسیر: له طعام او خوړو څخه انسان ته قوّت رسیږي، مګر دوزخیانو ته هیڅ یو داسې مرغوبه خواړه نه وررسیږي چې د هغوی د راحت او د قوت سبب شي، هو ! یواځې هغوی ته به د دوزخیانو د زخمونو زوې ورکولی کیږي، چې هغه به پرته له هغو ګنهګارانو څخه بل څوک نشي خوړی، او هغه هم د لوږې او تندې له شدّته تېروتلي په دې خیال سره یې خوري، او داسې یې ګڼي چې د هغه څخه هغه ته څه ګټه وررسیږي، وروسته له هغه دا وربښکاریږي چې د هغه خوړلو د لوږې له ربړه لوی تکلیف ورپېښ کړ، (أعاذنا الله من سائر أنواع العذاب في الدنيا والآخرة).

فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُونَ ﴿٣٨﴾ وَمَا لَا تُبْصِرُونَ ﴿٣٩﴾ إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿٤٠﴾

نو قسم خورم زه په هغو شیانو چې وینئ یې تاسې. او په هغو شیانو چې نه یې وینئ تاسې. بېشکه دا (قرآن) خامخا خبره د رسول مکرم عزتمن ده.

تفسیر: یعنې هر څه چې د جنّت او د دوزخ او نورو په نسبت بیان شو؛ دا کومه شاعري نه ده، او نه د کهانت اټکلونه او چټي (بېکاره) خبرې دي، بلکه دا قرآنکریم د الله تعالی کلام دی، چې له الله تعالی له خوا نه یې یوه لویه پرښته جبریل علیه السلام راوړي، او یو لوی پیغمبر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یې اوروي، هغه پرښته چې دغه قرآنکریم د الله تعالی له خوا نه راوړي، او دغه محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم چې هغه قرآن شریف په څمکه کې انسانانو ته وررسوي؛ دا دواړه عزتمن رسولان دي، د یوه کرامت خو تاسې پخپلو سترګو سره وینئ، او د بل کرامت او لویي د هغه اول کریم د بیان څخه تاسې ته ثابته شوې ده.

وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ۚ قَلِيلًا مَّا تُؤْمِنُونَ ﴿٤١﴾

او نه ده دا خبره د کوم شاعر، بیخي لږ ایمان راوړئ تاسې (بلکه نه مؤمنان کېږئ).

تفسیر: یعنې د قرآنکریم په کلام الله والي باندې کله کله ستاسې په زړونو کې له یقین څخه پلوشې راځلیږي، مګر ډېر لږ چې د نجات لپاره کافي نه دی، آخر ولې د دې کلام الله په نسبت د شاعری او کاهنی خبرې کوئ؟ آیا د واقعي انصاف له مخې دا ویلی شئ؟ آیا دا د کوم شاعر کلام کېدی شي؟ او د شعر له قسم څخه دی؟ په شعر کې وزن، بحر او نورو شتوالی ضروري دی، او په قرآنکریم کې د هغو شیانو نښه نشته، د شاعرانو خبرې زیاتره بې اصله وي، او زیاتره مضمونونه یې یواځې وهمي او خیالي وي، او حال دا دی چې په عظیم الشأن قران کې ټول ثابته حقایق او محکمه اصول په قطعي دلائلو او یقیني حُجّتونو سره بیان شوي دي.

وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ۚ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿٤٢﴾

او نه ده دا خبره د کاهن (ترویتي لکه چې تاسو ګمان کوئ)، لږ پند اخلئ تاسې (بلکه نه یې اخلئ).

**تفسير:** يعني په پوره فکر سره يې رامعلوم کړئ، او ښه چرت (خيال) په کې ووهئ !، چې دا د کوم شاعر او کاهن کلام نه دی، کاهنان په عربو کې همغه خلق وو چې له بُتانو، پيريانو او نورو خرافاتو او رذائلو سره يې تعلّقات او مناسبات لرل، دوی خلقو ته د کومې جزوي غيبي خبرې په نسبت ځينې مقفّا او مسجّع خبرې اورولې، مګر د پيريانو په کلام کې معجزې نه وې، چې همغه غوندې بل څوک به خبرې نشي کولی، بلکه که کوم جنّ کوم ترويتي بامبړ (کاهن) ته کومه خبره وروښيي؛ بل پيری هم همغسې ورښوولی شي، او دا کلام يعني پاک قرآن داسې يوه معجزه ده چې ګرد جنّ او انس که سره يو ځای شي، د همغه په شان کومه خبره نشي جوړولی، د نورو کاهنانو او ترويتيانو بامبړانو په خبره کې يوازې د قافيې او د سجعې د رعايت لپاره ډېر الفاظ راوړي چې بالکل بېکاره وي، خو په دغه معجز نظام کلام کې يو حرف او توری يو حرکت هم بېکاره او بې فائدې نه دی.

تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٤٣﴾

دغه (قرآن) نازل شوی دی له (جانبه د پالونکي) رب د عالميانو.

**تفسير:** ځکه چې د ګردې دنيا د تربيت ډېر اعلی او کلک اصول په دغه عظيم الشأن قرآن کې بيان شوي دي.

وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْاَقَاوِيْلِ ﴿٤٤﴾ لَاَخَذْنَا مِنْهُ بِالْيَمِيْنِ ﴿٤٥﴾ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِيْنَ ﴿٤٦﴾ فَمَا مِنْكُمْ مِّنْ اَحَدٍ عَنْهُ حٰجِزِيْنَ ﴿٤٧﴾

او که له ځانه جوړولی (محمد) مونږ باندې ځينې خبرې (چې مونږ ورته نه وي ويلې). نو هرومرو (خامخا) بدل اخيستی به وو مونږ له ده په ښي لاس سره (او يا نيولی به مو وو د ښي لاسه او عذاب به مو ورته ورکړی وو). بيا به خامخا پرې کړی وو مونږ له ده رګ د زړه (او وژلی به مې وو). پس نه به وو هيڅوک له تاسې څخه (يعني نه يئ تاسې له قتل د) هغه (محمد) ځنې منع کوونکي (ما لره).

**تفسير:** شاه عبد القادر (رحمه الله) ليکي: «يعني که ده دروغ پر الله تعالی باندې جوړول؛ نو اول به يې الله تعالی دښمن کېده، او له لاسه به يې نيوه، قاعده ده چې د ورمږ وهلو په وخت کې جلادان مقتولان له ښي لاس څخه اخلي، تر څو له خپل ځای څخه له سره ونه ښوريږي».

وَاِنَّهٗ لَتَذْكِرَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٨﴾ وَاِنَّا لَنَعْلَمُ اَنَّ مِنْكُمْ مُّكَذِّبِيْنَ ﴿٤٩﴾ وَاِنَّهٗ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٥٠﴾

او بېشکه دغه (قرآن) خامخا تذکره پند دی ويرېدونکيو لره (چې نفع ترې اخلي). او بېشکه مونږ ته خامخا معلوم دي دا چې بېشکه ځينې له تاسې څخه دروغ ګڼونکي دي (قرآن لره). او بېشکه دغه (انکار له قرآن) خامخا سبب د پښېمانی دی پر منکرانو کافرانو باندې.

**تفسير:** يعني له الله تعالی څخه ويريدونکي د دې خبرې له اورېدلو څخه پند اخلي، او د هغو په زړونو کې چې وېره نه وي؛ هغه يې دروغ ګڼې، ليکن يو وخت داسې راتلونکی دی چې دا کلام او د هغوی دا دروغ بلل به د سخت حسرت او پښېمانی سبب شي، او هلته به ارمان کوي چې ولې مو هسې رښتيا خبره دروغ وبلله، چې نن د هغې لامله په دې آفت ککړ شوي يو.

وَإِنَّهُۥ لَحَقُّ ٱلْيَقِينِ ۝٥١ فَسَبِّحْ بِٱسْمِ رَبِّكَ ٱلْعَظِيمِ ۝٥٢

او بېشکه دغه (قرآن) خامخا (عین) حق یقین (محض او د منلو وړ ـ قابل) دی. پس تسبیح پاکي ووایه په نامه د رب خپل چې له ګردو څنې عظیم ډېر لوی دی.

تفسیر: یعنې دا کتاب خو داسې حق او رښتیا دی چې له حده تېر د منلو وړ (لایق) دی، او د هغه مضامین له سره تر آخره پورې رښتیا او هیڅ یو شک او شُبهه په کې نشته، ښایي چې هر سړی په هغه باندې ایمان راوړي، او تل د الله تعالی په عبادت او تسبیح او تحمید کې مشغول اوسي.

تمّت سورة الحاقة بفضل الله ومنّه، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُوْرَةُ الْمَعَارِج

«د (المعارج) سورت مکّي دی، (۴۴) آيتونه (۲) رکوع لري، په نزول کې (۷۹) او په تلاوت کې (۷۰) سورت دی، وروسته د (الحاقة) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

سَاَلَ سَآئِلٌۢ بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ ۝١ لِّلْكٰفِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ ۝٢

وغوښت غوښتونکي يو عذاب واقع کېدونکی لوېدونکی. (منکرانو) کافرانو لره چې نشته هغه ته دفع کوونکی (چې راشي).

**تفسیر:** شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې پیغمبر تاسې ته عذاب غوښتی دی، چې هغه هیڅوک له تاسې څخه نشي لرې کولی»، یا به غوښتونکي کفّار وي چې ویل به یې: آخر هغه عذاب ولې ژر نه راځي چې وعده یې مونږ ته راکړې شوې ده؟ ای الها ! که د محمد دا وینا په رښتیا وي؛ نو پر مونږ باندې له اسمانه تیږي ولې نه وریږي؟ دا خبرې به یې د انکار او تمسخر له لارې کولې.

مِّنَ اللهِ ذِى الْمَعَارِجِ ۝٣

له طرفه د الله چې څښتن د لويو لوړو (اوچتو) زينو دی.

**تفسیر:** یعنې پرښتې او د مسلمانانو ارواح ګرد اسمانونه درجه په درجه طی کوي، د هغه دربار ته ورنژدې کیږي، او دا درجې د مسافت او د لرېوالي او نژدېوالي له پلوه سره مختلفې او متفاوتې دي، او فرق او توپیر لري، ځینې داسې چې: په یوه رپه کې د هغه د لوړوالي سبب کېدی شي، لکه د اسلام کلمه په ژبه سره ویل، او ځینې داسې دي چې یوه ګړۍ په هغه سره ترقي حاصلیږي لکه اودس او لمونځ کول، او ځینې په پوره ورځ کې لکه روژه یا په کامله میاشت کې لکه د رمضان د میاشتې روژه نیول، او ځینې په پوره یو کال لکه حج کول، (وعلی هذا القیاس) همدا راز د پرښتو او د ارواحو عُروج چې په هر کار باندې مقرر دی، وروسته له دې چې له هغه څخه فراغت ومومي، هم مختلف او متفاوت دي، او د قدوس الله تعالی تدبیر او انتظام هسک او ټیټې بېشماره درجې لري.

تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ

چې خيژي ملائکې پرښتې او روح (جبريل) په طرف د هغه.

**تفسیر:** یعنې پرښتې، جبریل علیه السلام وغیره الله تعالی طرف ته خیژي، او یا پرښتې او د نورو بندګانو ارواح الله تعالی ته خیژي.

فِىْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ۝٤

په هغه ورځ کې چې ده اندازه د هغې پنځوس زره کاله (په نسبت سره کافرانو ته).

**تفسیر:** د قیامت ورځ د پنځوسو زرو کلونو په مېچ ده، یعنې له اولې شپېلۍ (صور) څخه تر هغه پورې چې جنّتیان په جنّت کې او دوزخیان په دوزخ کې ننوځي؛ پنځوس زره کاله تیرېږي.

فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيلًا ﴿٥﴾

نو صبر وکړه (ای محمده !) صبر جمیل نېک (بې له شکوه ـ شکایت ـ جزع ـ فزع).

تفسیر: یعنې که دا کافران د انکار او تمسخر له لارې شورماشور کوي چې ژر هغه ټاکلی عذاب راورسیږي، بیا هم تاسې تلوار مه کړئ !، بلکه په صبر او استقلال سره اوسئ !، مه مو زړه تنګوئ !، او نه د شکایت الفاظ ښایي د تاسې له خولې څخه ووځي !، دا ستاسې صبر او د دوی تمسخر او ملنډې وهل به ضرور خپله اغېزه او اثر ښکاره کوي.

إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيدًا ﴿٦﴾ وَنَرَاهُ قَرِيبًا ﴿٧﴾

بېشکه دغه (منکران) ویني هغه (عذاب یا قیامت) لرې. او مونږ وینو هغه (عذاب یا قیامت) نژدې.

**تفسیر:** یعنې د دوی په خیال کې د قیامت راتګ لرې ورځي، بلکه د دوی په زعم وقوع یې هم ممکن نه دی، او په عقل کې یې له سره نه ځاییږي، او مونږ یې ډېر نژدې ګڼو، او هسې بولئ چې اوس راځي.

يَوْمَ تَكُونُ السَّمَاءُ كَالْمُهْلِ ﴿٨﴾ وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ ﴿٩﴾

هغه ورځ (به واقع شي پر منکرانو عذاب) چې وګرځي اسمان په شان د قلعي ژېړ ویلي شوی یا (تورې خټې د تېلو). او وبه ګرځي غرونه په شان د وړي نداف وهلې رنګارنګ.

**تفسیر:** وړۍ مختلف او راز راز رنګونه لري، او د دغو غرونو رنګونه هم سره مختلف او راز راز دي، لکه چې الله تعالی د «فاطر» سورت په خلورمه رکوع (۲۷) آیت کې فرمايي: ﴿وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا وَغَرَابِيبُ سُودٌ﴾ او د «القارعه» په سورت کې یې فرمایلي دي: ﴿كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ﴾ «یعنې غرونه لکه رنګینې وهلی شوې وړۍ غوندې به وي»، دا خوا او هغه خوا به رغړي رارغړي.

وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا ﴿١٠﴾ يُبَصَّرُونَهُمْ

او نه کوي پوښتنه یو دوست له بل دوسته (ځکه چې مشغول به وي په ځان خپل، اګر که په نظر ورځي دوی ته هغوی). او ښه به یې پېژني.

**تفسیر:** شاه صاحب لیکي: «یعنې ګرد به سره په نظر راځي، او دا به ورښکاریږي چې د دوی دوستي چټې او بېکاره وه»، هر یو به د بل حال او احوال ګوري، مګر یو له بل سره څه مرسته او حمایت نشي کولی، او هر یو به پخپل فکر کې ډوب تللی وي.

يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِي مِنْ عَذَابِ يَوْمِئِذٍ بِبَنِيهِ ﴿١١﴾ وَصَاحِبَتِهِ وَأَخِيهِ ﴿١٢﴾ وَفَصِيلَتِهِ
الَّتِي تُؤْوِيهِ ﴿١٣﴾ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ يُنْجِيهِ ﴿١٤﴾

خوښوي به مجرم ګنهګار (کافر) چې فدیه ورکړي له عذابه د دغې ورځې په ځامنو خپلو سره. او ملګرې ښځې خپلې سره، او ورور سره. او خپلوانو قبیلو خپلو سره هغو سره

چې ځايونه يې ورکول دوی ته په دنيا کې. او هغه څوک چې په ځمکه کې دي ټول، بيا وژغوري ځان خپل.

**تفسير:** يعنې غواړي چې ګرد کور او کهول او خپل که يې له لاسه پوره وي او په درد يې وخوري له خپل ځانه قربان کړي، او پخپله فديه کې يې ورکړي، او خپل ځان وژغوري، مګر دا به امکان ونه لري، او خلاص به نشي له عذابه ځکه چې:

كَلَّا ۖ إِنَّهَا لَظَىٰ ﴿١٥﴾ نَزَّاعَةً لِّلشَّوَىٰ ﴿١٦﴾

نه ده داسې چې ارزو کوي دوی. بېشکه دا (اور د دوزخ) لمبې وهونکی دی. ويستونکی دی (له کفّارو څخه) د اينې (يا د پوستکو د لاسو او د پښو د دوی).

**تفسير:** يعنې هغه اور به مجرم کله پربږدي، هغه به يې پوستکی وباسي، او تر اينې (جګر) پورې يې رسيږي، او اينه يې هم ترې وباسي.

تَدْعُو مَنْ أَدْبَرَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١٧﴾ وَجَمَعَ فَأَوْعَىٰ ﴿١٨﴾

رابولي (دا دوزخ) هغه څوک چې شا يې کړې وي او مخ يې ګرځولی وي (له ايمانه). او ټول کړی يې وي (مال) نو ساتلی يې وي (د الله حق يې ترې نه وي ورکړی).

**تفسير:** يعنې د دوزخ له لوري به يو رابلکودل او نارې او سورې وي، هومره سړي چې په دنيا کې د حق او رښتيا په لوري شاه اړولې او د ښو چارو څخه يې مخ ګرځولی وي، او د مالونو او شتو په ټولولو او کلکو ساتلو کې مشغول؛ هغه ګرد به د دوزخ په لوري رابلکودل کيږي.

۞ إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا ﴿١٩﴾ إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوعًا ﴿٢٠﴾ وَإِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ مَنُوعًا ﴿٢١﴾

بېشکه انسان بني آدم پيدا کړی شوی دی هلوع حارص بې صبره. کله چې ورسيږي ده ته شر خرابي؛ صبر نه کوي فرياد کوي. او کله چې ورسيږي ده ته ښېګڼې؛ نو بې توفيق کيږي منع کوونکی شي (حق لره).

**تفسير:** يعنې په هيڅ لوري پخپلې بهادرۍ، کلکتوب، پوخوالي، قوت او همّت نه ورښکاروي، که فقر، فاقه، ناروغي او سختي پرې راشي؛ نو بې صبري ورښکاروي، ويريږي او نااميده کيږي، او هسې ګڼي چې اوس د هغه لپاره هيڅ يوه لاره نه ده پاتې، چې په هغې کې له هغه ربړ او مصيبت نه ځان وژغوري، که مال، شته، دولت، روغتيا، عظمت او پت ور په برخه شي؛ نو د ښېګڼې لپاره به هيڅ خپل لاس نه غځوي، او د الله تعالی په لاره کې هيڅ يو شی په اخلاص او مينې سره نه لګوي، هو ! هغه سړي له دې وينا څخه مستثنی دي، چې د هغوی بيان دغه دی چې اوس راځي.

إِلَّا الْمُصَلِّينَ ﴿٢٢﴾ الَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَاتِهِمْ دَائِمُونَ ﴿٢٣﴾

مګر (نه دي پيدا کړی شوي هلوع هغه) لمونځ کوونکي چې دوی پر لمانځه خپل دائم قائم دي. او هيڅکله او هيچېرې هيڅ يو لمونځ ترې نه فوت کيږي.

**تفسير:** يعنې د لمانځه ناغه کوونکي نه دي، بلکه په مداومت او انتظام او التزام سره يې کوي، او د لمانځه په حالت کې په ډېر سکون او اطمينان سره سم برابر لمونځ کوي، او تل لمانځه ته متوجّه وي.

وَالَّذِينَ فِيٓ أَمۡوَٰلِهِمۡ حَقّٞ مَّعۡلُومٞ ۝٢٤ لِّلسَّآئِلِ وَٱلۡمَحۡرُومِ ۝٢٥

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې په اموالو د هغوی کې حق برخه معلومه وي (له زکات او صدقات). لپاره د غوښتونکیو (فقیرانو) او محروم (فقیرانو چې سوال نه کوي).

تفسیر: د «المؤمنون» په سورت کې د دې تفسیر شوی دی.

وَٱلَّذِينَ يُصَدِّقُونَ بِيَوۡمِ ٱلدِّينِ ۝٢٦

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې مصدق باور کوونکي دي په ورځ د انصاف جزاء باندې.

تفسیر: یعنې د همدې یقین په بناء باندې ښه کارونه کوي، چې په هغه ورځ به یې په کار ورځي.

وَٱلَّذِينَ هُم مِّنۡ عَذَابِ رَبِّهِم مُّشۡفِقُونَ ۝٢٧

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې دوی له عذابه د رب خپل وېرېدونکي وي (اګر که په عبادت کې یې ډېر کوښښ هم کړی وي).

تفسیر: یعنې د الله تعالی له عذابه ویرېږي، او په خرابو کارونو پسې هیڅ نه ګرځي، ځکه چې:

إِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمۡ غَيۡرُ مَأۡمُونٖ ۝٢٨

بېشکه له عذابه د رب؛ دوی نه دي پر امن کړی شوي (بلکه تل ترې ویرېږي).

تفسیر: یعنې د الله تعالی عذاب داسې یو شی نه دی چې بنده د هغه له لوري ځنې مأمون شي، او بې وېرې کیني، بالخاصه منکران او مجرمان خو له سره ترې په امان نه دي.

وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِفُرُوجِهِمۡ حَٰفِظُونَ ۝٢٩ إِلَّا عَلَىٰٓ أَزۡوَٰجِهِمۡ أَوۡ مَا مَلَكَتۡ أَيۡمَٰنُهُمۡ فَإِنَّهُمۡ غَيۡرُ مَلُومِينَ ۝٣٠ فَمَنِ ٱبۡتَغَىٰ وَرَآءَ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡعَادُونَ ۝٣١

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې دوی د خپل شهوت د ځایونو ساتونکي دي. مګر په ښځو خپلو باندې او په هغې وینځې خپلې باندې چې یې مالکان شوي دي ښې لاسونه د دوی، نو بېشکه دوی نه دي ملامت کړی شوي (ځکه چې خپلې ښځې ـ وینځې پرې حلالې دي). نو هغه چې غواړي پرته له دغو څخه؛ پس همدوی دي له حده تېرېدونکي.

تفسیر: یعنې که څوك پرته له خپلې حلالې ښځې یا وینځې ځنې بل کوم ځای د شهوت د قضاء لپاره ولټوي؛ نو هغه د اعتدال د حد او جواز څخه د باندې قدم ږدي، نو متعه موقّته، بهیمه او استمناء (په لاس سره منی ایستل) او نور ناروا دي.

وَٱلَّذِينَ هُمۡ لِأَمَٰنَٰتِهِمۡ وَعَهۡدِهِمۡ رَٰعُونَ ۝٣٢

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې دوی امانتونو خپلو لره او وعدو خپلو لره ساتونکي دي (او په سر یې رسوي).

**تفسیر:** په دې کې د الله تعالی او د بندګانو د ګردو حقوق راغلل، ځکه د سړي هومره قوّتونه چې شته هغه ګرد د الله تعالی امانت دی، نو ښایي هغه د الله تعالی په راښوولو مواقعو کې صرف کړی شي، او هغه قول او اقرار چې په ازل کې یې تړلی دی؛ له هغه ځنې خپله غاړه ونه غړوي !.

وَالَّذِيْنَ هُمْ بِشَهٰدٰتِهِمْ قَآئِمُوْنَ ﴿۳۳﴾

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې همدوی په شاهدۍ خپلې باندې سم ولاړ وي.

**تفسیر:** یعنې که ضرورت پېښ شي؛ نو بې له زیادت او لږوالي او لحاظ او رعایت شاهدي ورکوي، او حقه خبره هیڅکله نه پټوي.

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۳۴﴾

او هغه کسان (هم هلوع نه دي) چې همدوی پر لمانځه خپل باندې ساتنه کوي (پخپلو وختونو یې اداء کړي).

**تفسیر:** یعنې د لمونځونو د اوقاتو، شرائطو، او آدابو ځنې باخبر وي، او د هغه صورت او حقیقت د ضایع کېدلو ځنې تل خپل ځان ساتي.

اُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۳۵﴾

دغه کسان به (چې موصوف په دغو اتو صفاتو دي) په جنّتونو کې به وي مکرّم عزّتمن کړی شوي.

**تفسیر:** یعنې د جنتیانو همدا اته صفتونه دي، چې په لمانځه سره او په لمانځه باندې ختم شوي دي تر څو معلوم شي چې لمونځ د الله تعالی په دربار کې څومره مهتمّ بالشأن او الزم او ضروري عبادت دی، د هر یوه مسلمان په وجود کې چې دا صفات او ستاینې وي؛ نو په هغه کې به د «هلوع» مذمّت نه وي.

فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ ﴿۳۶﴾ عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ ﴿۳۷﴾ اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ ﴿۳۸﴾ كَلَّا ؕ

نو څه شوي دي هغو کسانو لره چې کافران شوي دي چې طرف ستا نه راځغاستونکي دي. له ښي لوري څخه او له کیڼ لوري څخه ناست ډلې ډلې (حلقه) وهونکي. آیا طمع کوي هر سړی له دوی ځنې چې داخل به کړی شي په جنّت د نعمتونو کې؟. نه ده داسې (چې دوی طمع کوي د دخول د جنّت).

**تفسیر:** ابن کثیر (رحمه الله) د دې آیتونو مطلب داسې اخیستی دی: یعنې ستاسې په لوري دا منکرین ولې په ډېره جلدۍ او تلوار سره درځغلي او منډې وهي، او ښي او کیڼې خوا ته ډلې ډلې پنډېږي، یعنې د پاك قرآن له اورېدلو ځنې ولې دومره تور خوري او بد وړي او تښتي؟ نو آیا سره له دې وحشت او نفرت دوی داسې توقّع او هیله هم لري چې له دوی څخه به هر یو سړی بې له اند ېښنې جنت ته ننوځي؟ هر ګز داسې نه ده، (هذا کما قال الله تعالی: ﴿فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ﴾ د «المدثر سورت» دویمه رکوع).

إِنَّا خَلَقْنَٰهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ ﴿٣٩﴾

بېشکه مونږ پيدا کړي مو دي دوی له هغې (نُطفې) څخه چې پرې پوهيږي دوی (چې ضعيفه او حقيره ده).

تفسير: يعنې د خاورې غوندې يو حقير شي يا له مني غوندې شي څنې پيدا شوي، هغه چېرې د جنت وړ وي تر څو چې په ايمان او وحدانيت سره خپل ځان پاک نه کړي، او په رښتيا سره معظم او مکرّم نه شي.

فَلَآ أُقْسِمُ بِرَبِّ ٱلْمَشَٰرِقِ وَٱلْمَغَٰرِبِ

نو قسم خورم په رب (مالك) د مشرقونو او (په رب مالك د) مغربونو.

تفسير: لمر، سپوږمۍ او نور ستوري هره ورځ له يوه نوي ځايه راڅرګنديږي، او په يو نوي ځای راپټيږي، نو د دې نقطو په اعتبار يې مشارق او مغارب ورته وويل.

إِنَّا لَقَٰدِرُونَ ﴿٤٠﴾ عَلَىٰٓ أَن نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٤١﴾

بېشکه مونږ خامخا قادر يو. په دې باندې چې بدل راوړو خير ډېر غوره له دوی څخه، او نه يو مونږ عاجزی کړی شوي (له ارادې خپلې).

تفسير: يعنې کله چې د هغوی په ځای له هغوی څنې ښه سړي راوستلی شو؛ نو پخپله دوی ولې نشو ژوندي کولی؟ يا دا مطلب: پرېږدئ چې دا د مکې کافران خندا او مسخرې وکړي، او ملنډې ووهي، مونږ به د اسلام د خدمت لپاره له دوی څنې غوره قوم راولو، لکه چې د قريشو په ځای يې د مدينې انصار ودرول، او مکه والان بيا د هغوی د واک څنې بهر ونه وتی شو، او په پای کې يې د خپلو شرارتونو خوند وڅکو.

تنبيه: د «مشارق» او «مغارب» قسم ښايي د دې لپاره ياد کړی وي، چې هغه الله تعالی چې هره ورځ مشرق او مغرب بدلوي؛ نو آيا هغه ته ستاسې بدلول کوم سخت او مشکل کار دی؟.

فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا۟ وَيَلْعَبُوا۟ حَتَّىٰ يُلَٰقُوا۟ يَوْمَهُمُ ٱلَّذِى يُوعَدُونَ ﴿٤٢﴾

نو پرېږده دوی (ای محمده !) چې ننوځي مشغوليږي په باطلو کې او لوبې کوي په دنيا کې تر هغه پورې چې پيوست شي دوی له هغې ورځې خپلې سره چې وعده يې کړی شوې ده له دوی سره (چې بدر يا قيامت دی).

تفسير: يعنې د لږو ورځو څنډ دی، بيا به د هغوی سزا يقيني وي.

يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ ٱلْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ يُوفِضُونَ ﴿٤٣﴾

هغه ورځ چې بهر راويستل شي دوی له قبرونو څخه چې ځغلېدونکي به وي لکه چې دوی په طرف د نښو چابک ځغلي.

تفسير: يعنې څرنګه چې ځوك د کومې خاصې نښې او علامې په لوري په منډو سره ځغلي، او يو له بله غواړي چې ژر ورسيږي.

خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۚ ذَٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ ﴿٤٤﴾

حال دا چې ذليلې خوارې به وي سترګې د دوی چې پټ کړی به وي دوی لره ذلت خواری، دا ورځ ده (هغه د قيامت) چې وو دوی چې وعده ورسره کړی شوې وه (په دنيا کې).

تمّت سورة المعارج بفضل الله ومنّه وكرمه.



# سُوۡرَةُ نُوۡحٍ

«د (نوح) سورت مکّي دی، (۲۸) آیتونه (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۷۱) او په نزول کې هم (۷۱) سورت دی، وروسته د (النحل) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اِنَّاۤ اَرۡسَلۡنَا نُوۡحًا اِلٰى قَوۡمِهٖۤ اَنۡ اَنۡذِرۡ قَوۡمَكَ مِنۡ قَبۡلِ اَنۡ يَّاۡتِيَهُمۡ عَذَابٌ اَلِيۡمٌ ①

بېشکه مونږ لېږلی وو مونږ نوح طرف د قوم د ده ته په دې سره چې وویروه ته قوم خپل پخوا له هغه ځنې چې راشي دوی ته عذاب دردناک.

تفسیر: یعنې پخوا له دې چې په دنیا کې د خپل کفر او شرارت لامله له یو لوی طوفان سره مقابل او په آخرت کې د دوزخ له عذاب سره مخامخ شي، ښایي چې مؤمنان شي.

قَالَ يٰقَوۡمِ اِنِّىۡ لَـكُمۡ نَذِيۡرٌ مُّبِيۡنٌ ۙ② اَنِ اعۡبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوۡهُ وَاَطِيۡعُوۡنِ ۙ③

وویل (نوح) ای قومه ځما ! بېشکه زه تاسې ته ویروونکی ښکاره یم (په دې سره چې وایم تاسې ته) چې بندګي کوئ تاسې الله ته، او وویرېږئ له الله ځنې، او ومنئ تاسې ځما خبرې !.

تفسیر: یعنې له الله تعالی ځخه وویرېږئ !، او کفر او معصیت پرېږدئ !، او د اطاعت او عبادت لارې خپلو ځانونو ته غوره کړئ !.

يَغۡفِرۡ لَـكُمۡ مِّنۡ ذُنُوۡبِكُمۡ وَيُؤَخِّرۡكُمۡ اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ؕ

چې وبښي (الله) تاسې ته ګناهونه ستاسې، او وروستي به کړي (الله) تاسې (بې له عذابه) تر نېټې په نامه کړی شوې پورې (چې نېټه د موت ده).

تفسیر: یعنې که ایمان مو راوړو؛ نو پخوا له ایمانه هغه حقونه چې تاسو تلف کړي دي هغه به دروبښلی شي، او د کفر او شرارت لامله د کوم عذاب راتلل چې مقدّر وو؛ هغه به د ایمان راوړلو ځنې وروسته نه راځي، بلکه تاسې ته مهلت درکاوه شي چې خپل طبیعي عمر سر ته ورسوئ، او د نورو ساکښانو (ژوندیو) د موت او د حیات له عمومي قانون سره سم په مقرر شوي وخت کې پر تاسې باندې مرګ راځي.

اِنَّ اَجَلَ اللّٰهِ اِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ ۘ

بېشکه چې اجل نېټه د الله کله چې راشي؛ نه وروستی کیږي.

تفسیر: یعنې د ایمان د نه راوړلو په صورت کې د هغه عذاب وعده چې شوې ده، که هغه پر سر باندې ودریږي؛ نو څوک یې مخه نشي نیولی، او نه د یوې شیبې وړاندې وروسته کیږي.

لَوۡ كُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ۝۴

كه چېرې يئ تاسې چې پوهېږئ.

**تفسير:** يعنې كه تاسې پوهه لرئ؛ نو دا ګردې خبرې د پوهېدلو او د عمل كولو وړ دي.

قَالَ رَبِّ اِنِّيۡ دَعَوۡتُ قَوۡمِيۡ لَيۡلًا وَّنَهَارًا ۝۵ فَلَمۡ يَزِدۡهُمۡ دُعَآءِيۡۤ اِلَّا فِرَارًا ۝۶

وويل (نوح) اى ربه څما ! بېشكه ما ومې باله قوم خپل (توحيد ته) شپه او ورځ (تل). نو زيات نه كړ دوى ته دعوت بلنې څما مګر تېښته (له ايمان او اطاعت څخه).

**تفسير:** يعنې نوح عليه السلام تر نهه نيم سوو كلونو پورې دوى وپوهول، كله چې د اميد هيڅ يوه هيله ورته پاتې نشوه؛ نو مأيوس او خفه شو، د الله تعالى په دربار كې يې عرض وكړ چې اى الله ! ما له خپل لوري د دعوت او تبليغ حق اداء كړ، او يوه شېبه مې هم څه معطلي او ډيل نه دى كړى، د ورځې په رڼا او د شپو په تيارو كې مې تل تر تله ستا په لوري بلنه كړې ده، مګر نتيجه داسې شوه چې هر څو هر څومره مې چې دوى ستا په لوري وبلل؛ دوى هومره له تا څخه لرې شول.

وَاِنِّيۡ كُلَّمَا دَعَوۡتُهُمۡ لِتَغۡفِرَ لَهُمۡ جَعَلُوۡۤا اَصَابِعَهُمۡ فِيۡۤ اٰذَانِهِمۡ

او بېشكه زه هر كله چې وبولم دوى (توحيد او اطاعت ته) د دې لپاره چې وبښې ته دوى؛ نو ننباسي دوى ګوتې خپلې په غوږونو خپلو كې (چې څما دعوت وا نه وري).

**تفسير:** څكه چې هغوى څما د خبرو اورېدل نه غواړي، او دايې پر ځان اخيستې ده چې دا غږ خامخا د هغوى غوږونو ته ونه رسيږي.

وَاسۡتَغۡشَوۡا ثِيَابَهُمۡ

او چاپېر كړي نغښتلي يې وو ځانونه خپل په جامو خپلو (لپاره د دې چې ما ونه ويني).

**تفسير:** تر څو هغوى څما او زه د هغوى صورت ونه ګورم، كه كوم وخت په ګوتو سره هغوى غوږونه په ښه ډول بند نشي.

وَاَصَرُّوۡا وَاسۡتَكۡبَرُوا اسۡتِكۡبَارًا ۝۷

او همېشه والى كوي (په كُفر خپل) او سركشي كوي (له متابعته څما) سركشي كول.

**تفسير:** يعنې په هيڅ ډول هغوى له خپلې طريقې څخه مخ اړوونكي نه دي، او د هغوى غرور دوى ته اجازه نه وركوي چې څما د اسلامي دعوت خبرو ته غوږ كيږدي.

ثُمَّ اِنِّيۡ دَعَوۡتُهُمۡ جِهَارًا ۝۸

بيا بېشكه ما وبلل دوى په ښكاره (بلنې سره).

**تفسير:** يعنې د هغوى په مركو او جرګو كې مې ويناوې وكړې، او په مجلسونو كې مې هم دوى په ښه شان سره وپوهول.

ثُمَّ إِنِّىٓ أَعۡلَنتُ لَهُمۡ وَأَسۡرَرۡتُ لَهُمۡ إِسۡرَارًا ﴿٩﴾

بیا بېشکه ما ښکاره وینا وکړه دوی ته، او په پټه مې وینا وکړه دوی ته.

تفسیر: یعنې پرته له جرګو او مجامعو څخه مې هم ګوښې له هغوی سره خبرې وکړې، او صافې مې هم هغوی ته وویلې، او په اشارو او کنایو مې هم وپوهول، په لوړ غږ مې هم وینا وکړه، او په ورو مې هم وویل، لنډه یې دا چې د پند هیڅ یو عنوان او هیڅ یو رنګ مې هم پرې نښود.

فَقُلۡتُ ٱسۡتَغۡفِرُواْ رَبَّكُمۡ إِنَّهُۥ كَانَ غَفَّارًا ﴿١٠﴾

نو ومې ویل دوی ته: بښنه وغواړئ له ربه خپله (له شرکه)، بېشکه هغه (الله) دی ډېر بښونکی (توبه کوونکیو لره هر کله چې توبه وباسي).

تفسیر: یعنې سره له سلهاوو کلونو له پوهولو څخه چې په تاسې باندې یې څه اثر ونه کړ، که اوس څما دا خبرې ومنئ، او د خپل حقیقي مالك په لوري مو سرونه ټیټ کړئ، او له هغه څنې د خپلو تېروتنو او خطاوو بښنه وغواړئ، نو ستاسې هغه پخواني ګناهونه او قصور بښل کیږي، ځکه چې الله تعالی لوی بښونکی دی، او ستاسې هغه ګرد پخواني ګناهونه به درمعافوي.

يُرۡسِلِ ٱلسَّمَآءَ عَلَيۡكُم مِّدۡرَارًا ﴿١١﴾ وَيُمۡدِدۡكُم بِأَمۡوَٰلٖ وَبَنِينَ وَيَجۡعَل لَّكُمۡ جَنَّٰتٖ وَيَجۡعَل لَّكُمۡ أَنۡهَٰرًا ﴿١٢﴾

راو به لیږي باران پر تاسې باندې ډېر اورېدونکی. او در ډېروي، کومك به کوي له تاسې سره په مالونو او ځامنو سره، او وبه ګرځوي تاسې ته باغونه او وبه ګرځوي تاسې ته ویالې.

تفسیر: یعنې د ایمان او استغفار په برکت به هغه قحط او سوکړه چې له څو کلونو راهیسې په هغه کې اخته یئ لرې کیږي، او الله تعالی ډېرې ښې ورېدونکې وریځې درلیږي، چې د هغه د ورېدو لامله به مو کښتونه او باغونه اوبه کیږي، مېوې او غلې ډېریږي، څاروي او نور ساکښان به څربیږي، شودې او غوړي به ډېریږي، او هغه ښځې چې د کفر او معصیت له سببه اوس شنډې شوي دي؛ هلکان به وځېږوي، لنډه یې دا چې د دنیا د عیش او نشاط سره د آخرت لویې درجې هم مومئ.

مَّا لَكُمۡ لَا تَرۡجُونَ لِلَّهِ وَقَارٗا ﴿١٣﴾

څه شوي دي په تاسې باندې چې امید هیله نه لرئ له الله څخه د عظمت او لویې، او یا له الله څخه د وقار لویې عزّت.

تفسیر: یعنې د الله تعالی له لویی څنی ښایی امید وکړی شی که تاسی د هغه امر ومنئ نو تاسو ته به لویی عزت او وقار دروبښي او یا دا مطلب چې تاسې د الله تعالی په لویې باندې ولې اعتقاد نه لرئ؟ او د هغه د عظمت او جلال څنې ولې نه ویرېږئ؟.

وَقَدۡ خَلَقَكُمۡ أَطۡوَارًا ﴿١٤﴾

او (حال دا دی چې) په تحقیق پیدا کړي یې یئ تاسې تېرېدونکي په مختلفو حالاتو، او یا راز راز.

تفسير: يعنې د مور په ګېډه کې مو ډول ډول رنګونه بدل کړل، او د اصلي مادې څخه اخيستی تر مړينې پورې سړی په راز راز بڼو (صورتونو) او رنګارنګ اشکالو اوړي رااوړي، او له ډېرو اطوارو ادوارو سره مخامخ کيږي.

أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللَّهُ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ طِبَاقًا ﴿١٥﴾ وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ﴿١٦﴾

آيا نه ګورئ تاسې څرنګه پيدا کړي دي الله اووه اسمانونه لاندې باندې، او ګرځولې يې ده سپوږمۍ په دې اسمانونو کې رڼا روښانه، او ګرځولی يې دی لمر ډيوه بله روښانه.

وَاللَّهُ أَنْبَتَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا ﴿١٧﴾

او الله زرغون پيدا کړي يئ تاسې له ځمکې څخه زرغونېده پيدا کېده.

تفسير: يعنې له ځمکې څخه يې په ډېر پوخوالي سره پيدا کړ، اول يې ځمونږ پلار آدم عليه السلام له خاورې څخه پيدا کړ، بيا يې نطفه چې له هغه څخه ووړکي پيدا کيږي، او د غـذاءاو د خوړو خلاصه او جوهر دی، او د ځمکې له عناصرو څخه پيدا کيږي.

ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ﴿١٨﴾

بيا به ننباسي تاسې (پس له مرګه) په هغې (ځمکې) کې، بيا به راوباسي تاسې (له قبورو څخه عند البعث) رايستل.

تفسير: يعنې وروسته له مړينې څخه بيا له خاورې سره ګډېږئ، بيا د قيامت په ورځ له هغه څخه راخېژئ.

وَاللَّهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا ﴿١٩﴾ لِتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا ﴿٢٠﴾

او الله ګرځولې ده تاسې ته ځمکه غوړولی فرش. تر څو چې لاړ شئ تاسې له دغې (ځمکې) نه پر لارو لويو ارتو باندې.

تفسير: يعنې پر هغه باندې کېنئ، ګرځئ، لاندې باندې ورشئ، او اوده شئ، په هر لوري يې ارتې لارې درايستلي دي، که يو سړی وغواړي او لازم وسايل ورسره وي؛ نو په ټوله ځمکه باندې چورلېدلی شي، او د لارې د نشتوالي لامله به هيڅ يو مشکلات نه ورپېښيږي.

قَالَ نُوحٌ رَبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَنْ لَمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ﴿٢١﴾

وويل نوح: ای ربه ځما ! بېشکه دوی نافرماني وکړه له ما څخه، او متابعت يې وکړ د هغه چا چې نه يې دی زيات کړی ده ته مال د ده، او اولاد ده (په هيڅ بابت کې) پرته له زيانکارئ ګمراهۍ.

تفسير: يعنې د خپلو مشرانو خبرې يې واورېدې، چې د هغوی په مال او اولاد کې هيڅ يو ښه والی او بهتري نشته، بلکه دوی پر هغوی باندې ورغونه شول، او د همدې لامله هم مشران له دين څخه بې برخې شول، او هم يې د ډېر تمرّد او تجبّر په سبب کشران محروم کړل.

وَمَكَرُوا۟ مَكْرًا كُبَّارًا ﴿۲۲﴾

او مکر وکړ دغو (رؤساوو د دوی) مکر ډېر لوی.

تفسیر: یعنې ګرد یې وپوهول چې د هغه خبره ونه مني، او راز راز تکلیفونه ور ورسوي.

وَقَالُوا۟ لَا تَذَرُنَّ ءَالِهَتَكُمْ

او وویل (مشرانو کشرانو ته) چې مه پرېږدئ تاسې (عبادت د) معبودانو خپلو.

تفسیر: یعنې د خپلو معبودانو په عبادت او حمایت باندې ټینګ اوسئ !، او د نوح په لمسون باندې مه غولېږئ !.

وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ﴿۲۳﴾

او مه پرېږدئ (عبادت د هغه بُت چې) وَدّ (نومېږي) او مه (پرېږدئ عبادت د هغه بت چې) سُواع (نومېږي) او مه (پرېږدئ تاسې عبادت د هغو بُتانو چې) یغُوث او یعُوق او نسر (نومېږي).

تفسیر: دا د هغو بتانو نومونه دي چې د هر مطلب لپاره یې یو بېل بُت جوړ کړی وو، په ځینو روایتونو کې راغلي دي چې په پخوانیو زمانو کې ځینې لویان هسې تېر شوي وو، چې خلقو له هغوی سره ډېره مینه درلوده (لرله)، کله چې هغوی مړه شول؛ نو د شیطان په لمسولو او غولولو خلقو د هغوی تصویرونه د یادولو په ډول ودرول، بیا یې د هغوی په تعظیم باندې شروع وکړه، ورو ورو یې د هغوی په بندګۍ باندې شروع وکړه (العیاذ بالله).

وَقَدْ أَضَلُّوا۟ كَثِيرًا ۖ وَلَا تَزِدِ ٱلظَّٰلِمِينَ إِلَّا ضَلَٰلًا ﴿۲۴﴾

او په تحقیق ګمراه کړي دي (دغو مشرانو په سبب د عبادت د بُتانو) ډېر (کشران خلق)، او مه زیاتوه (ای ربه ځما !) ظالمانو بې انصافانو لره مګر خو ګمراهي هلاک عذاب.

تفسیر: شاه عبد القادر (رحمه الله) لیکي: «یعنې سرګردانه ګرځي، یو سم تدبیر د دوی له لاسو نه دی پوره».

مِّمَّا خَطِيٓـَٰٔتِهِمْ أُغْرِقُوا۟ فَأُدْخِلُوا۟ نَارًا ۖ

په سبب د ګناهونو خپلو سره ډوب کړل شول (په دنیا کې په ډېرو دریابي اوبو کې) نو داخل به کړل شي (أخروي) اور ته.

تفسیر: یعنې طوفان راغی، او په ښکاره ډول د لوی بحر په اوبو کې ډوب شول، خو په رښتیا سره د برزخ عذابونو ته ورسېدل، چې وروسته متّصل د آخرت اور هم هغوی ته تیار دی.

فَلَمْ يَجِدُوا۟ لَهُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ أَنصَارًا ﴿۲۵﴾

بیا نه موندل دوی د خپلو ځانونو لپاره پرته له الله مددګاران (چې له عذاب څخه یې خلاص کړي).

تفسیر: یعنې هغه بُتان: ود، سواع، یغوث او نور د دوی د دې اړتوب په وخت کې هیڅ په کار ورنغلل، او نه یې مرسته له هغوی سره وکړه.

وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ دَيَّارًا ۝۲۶ إِنَّكَ إِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوْا عِبَادَكَ
وَلَا يَلِدُوْٓا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ۝۲۷

او وویل نوح: ای ربه ځما ! مه پرېږده پر ځمکه باندې له کافرانو څخه هیڅ اوسېدونکی (یا ګرځېدونکی، او ټول هلاک کړه). بېشکه ته که چېرې پرېږدې ته دوی؛ نو ګمراهان به کړي دوی (مؤمنان) بندګان ستا، او نه ځېږوي دوی مګر خو فاجر بېباکه ناشکره بدکاره له حقه منکره.

**تفسیر:** یعنې یو کافر هم ژوندی مه پرېږده ! ځکه چې له دوی څنې هیڅ یو کافر د دې خبرې لایق او وړ نه دی چې ژوندی پرېښود شي، که له دوی څنې کوم یو ژوندی پاتې شي؛ نو ځما تجربه دا راښیي چې د هغه له نطفې څخه به هم بې حیا بېباک د حق منکر او بې شرم او ناشکره ځوځات پیدا کیږي، او تر هغه پورې چې له دوی څنې یو سړی هم پاتې وي؛ نور خلق نه پرېږدي چې په سمه لاره راشي، او ګرد به سره ګمراهان کړي.

رَبِّ اغْفِرْ لِيْ وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا وَّلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنٰتِ

ای ربه ځما ! وبښه ما او مور پلار ځما، او هغه څوک چې ننوځي کور بېړۍ مسجد ځما ته حال دا چې ایمان لرونکي وي، او (وبښه) ګرد ایمان لرونکي نارینه او ګردې ایمان لرونکې ښځې.

**تفسیر:** یعنې که سم ځما د مرتبې سره له ما نه کوم تقصیر شوی وي؛ هغه پخپل فضل او کرم سره راوبښه !، او ځما د مور او پلار او هغه ایمانداران چې ځما په کور یا بېړۍ یا مسجد کې دي؛ د هغوی ګردې خطاوې ورمعاف کړه !، بلکه تر قیامت پورې هر څومره نارینه او ښځې چې د ایمان په شرف رسېدلي وي؛ هغو ګرد (ټول) وبښه !.

وَلَا تَزِدِ الظّٰلِمِيْنَ إِلَّا تَبَارًا ۝۲۸

او مه زیاتوه (ای ځما پروردګاره) ظالمانو (کافرانو) لره مګر خو بربادي هلاک (لکه چې هغوی هلاک شول).

تمّت سورة نوح بفضل الله و کرمه، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الْجِنِّ

«د (الجنّ) سورت مکي دی، (۲۸) آیته (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۷۲) او په نزول کې (۴۰) سورت دی، وروسته د (الأعراف) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قُلْ أُوْحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ

ووايه (ای محمده دوی ته) وحي راغلې ماته چې بېشکه شان دا دی چې واورېده (قراءت څما) يوه ډولي له پيريانو نه.

فَقَالُوْٓا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْاٰنًا عَجَبًا ۝ يَّهْدِيْٓ إِلَى الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ ۖ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَآ أَحَدًا ۝

نو وويل (دوی نورو قومونو خپلو ته کله چې بېرته ورغلل چې) بېشکه مونږ وامو ورېد يو قرآن عجيب (په فصاحت او بلاغت سره). چې هدايت کوي لاره ښيي رشد (ايمان او حق) ته، نو ايمان راووړ مونږ پر هغه (قرآن)، او هرګز به شريک نه کړو (پس له دې ورځې) له رب خپل سره بل هيڅوک.

تفسير: د «أحقاف»په سورت کې تېر شوي دي چې رسول أکرم صلی الله عليه وسلم د سهار په لمانځه کې قرآنکريم لوست، چې يوه ډله پيريان له هغه ځايه تېرېدل، کله چې د قرآن مجيد غږ يې واورېد؛ ټول په هغه باندې مين او د زړه له کومي مسلمانان شول، بيا خپلو تېرو ته بېرته لاړل، او دا ګردې خبرې يې هلته وويلې، چې مونږ داسې يو کلام واورېد چې پخپل فصاحت، بلاغت، حسن الأسلوب، قوت تأثير، خوږوالي، موعظت، علومو او مضامينو او پندونو په اعتبار ډېر عجيب او غريب دی، د معرفت ربّاني او رشد دنيوي او فلاح أخروي په لورې لار ښيي، نو ځکه په مجرد د اورېدلو بلا توقّف پر هغه مو يقين وکړ، او هيڅ يو شک او شُبهه ځمونږ په زړونو کې پاتې نشوه، چې داسې خبرې پرته د الله تعالی د بل چا نه دي، اوس مونږ سم د هغه له تعليم او هدايت سره عهد کوو چې وروسته له دې نه مونږ هيڅ يو شی د الله شريک نه ګڼو.

وَّأَنَّهُ تَعٰلٰى جَدُّ رَبِّنَا مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ۝

او بېشکه شان دا دی چې لوی دی شأن لويي د رب ځمونږ، نه ده نيولې (الله) ښځه او نه اولاد (لکه چې وايي د پيريانو او د انسانانو کفّار او مشرکان).

تفسير: يعنې ښځه او اولاد لرل د الله تعالی له شان او عظمت څخه منافي دي.

وَّأَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ سَفِيْهُنَا عَلَى اللهِ شَطَطًا ۝

او (وويل پيريانو قوم خپل ته داسې) بېشکه شان دا دی چې ويل به ناپوه ځمونږ (ابليس) پر الله باندې خبرې لويې لرې له حق صواب.

تفسیر: یعنې ځمونږ په منځ کې هغه بېوقوفان چې د الله تعالی په نسبت داسې چټي خبرې له خپل ځانه جوړوي، او لويې يې کړې وي، د هغوی په منځ کې له ګردو څخه لوی ناپوه ابليس دی، ښايي خاص همدغه شيطان د (سفيه) له لفظ څخه مراد وي.

وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنۡ لَّنۡ تَقُوۡلَ الۡاِنۡسُ وَالۡجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ۝

او بېشکه مونږ ګمان کاوه چې هيڅکله به نه وايي انسانان او پيريان پر الله باندې دروغ.

تفسیر: یعنې ځمونږ په خيال کې داسې راتلل، چې دومره زيات انسانان او پيريان چې په دوی کې لوی سړي او پوهان هم شته؛ څرنګه سره يو ځای شوي د الله تعالی په نسبت دروغ خبرې جوړوي، او داسې جرأتونه کوي؟، په همدې څرت کې مونږ لاره غلطه کړه، اوس د پاک قرآن له اورېدلو څخه هغه ګردې غلطې خبرې او دروغ راښکاره شوي، او د خپلو مشرانو د تقليد څخه مو ځانونه وژغورل.

وَّاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الۡاِنۡسِ يَعُوۡذُوۡنَ بِرِجَالٍ مِّنَ الۡجِنِّ فَزَادُوۡهُمۡ رَهَقًا ۝

او بېشکه شان دا دی چې وو به ډېر سړي له انسانانو څخه چې پناه به يې غوښتله په سړيو له پيريانو څخه، نو زياته کړه دغو انسانانو دغو پيريانو لره سر کشي (په سبب د استعاذې پناه غوښتو د دوی له جنّاتو نه).

تفسیر: په عربو کې جهالت ډېر وو، له پيريانو څنې به يې د پټو خبرو پوښتنې کولې، او د هغوی په نامه به يې نذرونه په غاړه اخيستل او ورکول به يې، کله به چې د کومې جوپې پړاو يا د تېرېدلو لاره پر کومې وېرووونکې کندې يا ځای باندې لوېده؛ ويل به يې چې: مونږ د دې ځای د پيريانو د هغه مشر په حلقه کې ننوځو، او ننګ وروړو چې د دې سيمې د پيريانو سردار دی، تر څو مو هغه د خپل لاس لاندې د پيريانو له شره وساتي، له داسې خبرې به پيريان لا مغروربدل، او په سر به يې ختل، او له بل لوري د داسې شرک لامله د انسانانو عصيان او طغيان لا پسې زياتېده، کله چې دوی پخپله پر خپلو ځانونو باندې پيريان مسلطول؛ نو هغوی به هم د هغوی په اغواء کې هيڅ لږوالی نه کاوو، په پای کې پاک قرآن د دې ګردو خرابيو بېخ وويست.

وَّاَنَّهُمۡ ظَنُّوۡا كَمَا ظَنَنۡتُمۡ اَنۡ لَّنۡ يَّبۡعَثَ اللّٰهُ اَحَدًا ۝

او بېشکه دوی ګمان کړی دی لکه چې ګمان کړی دی تاسې، چې هر ګز به پورته نه کړي الله هيڅوک (پس له مرګه له قبره).

تفسیر: مسلمانان پيريان دا ګردې خبرې له خپلو قومونو سره کوي، يعنې لکه چې تاسې خيال کوئ د ډېرو سړيو خيال همداسې دی، چې الله تعالی به مړي هيڅکله له هديرو څخه نه پورته کوي، يا به وروسته له دې نه بل کوم پيغمبر نه مبعوثوي پرته له هغه پيغمبرانو چې پخوا له دې نه مبعوث شوي دي؛ اوس له قرآنه راښکاري چې الله تعالی يو عظيم الشأن رسول رالېږلی چې ګردو خلقو ته دا ور په يادوي، چې تاسې ټول له مړينې څخه وروسته بيا ژوندي کېږئ، او د ذرې ذرې حساب به ورکوئ.

وَّاَنَّا لَمَسۡنَا السَّمَآءَ فَوَجَدۡنٰهَا مُلِئَتۡ حَرَسًا شَدِيۡدًا وَّشُهُبًا ۝ وَّاَنَّا كُنَّا نَقۡعُدُ مِنۡهَا
مَقَاعِدَ لِلسَّمۡعِ ؕ فَمَنۡ يَّسۡتَمِعِ الۡاٰنَ يَجِدۡ لَهٗ شِهَابًا رَّصَدًا ۝

بېشکه مونږ ورسېدو اسمان ته (لپاره د غوږ نیولو خبرو د ملائکو ته)؛ نو ومو موندو هغه (اسمان) ډك کړی شوی له څوکیدارانو سختو (چې ملائکې دي) او له ستوریو سوځوونکیو څخه. او بېشکه وو مونږ چې کېناستلو پخوا له لېږلو د دې پیغمبر له دې آسمانه په ځایونو د کېناستلو کې لپاره د اورېدلو، نو هغه څوك چې اورېدل غواړي اوس؛ مومي به لپاره د ځان د اور لمبه منتظره (چې سوځوي يې).

**تفسیر:** یعنې مونږ الوتلې نژدې اسمان ته ورسېدو؛ نو هلته مو ولېدل چې ډېرې سختې جنګې پېرې دربدلې دي، چې هیڅ یو شیطان نه پرېږدي چې غیبي خبرې واوري، او هر هغه څوك چې داسې اراده ولري؛ پر هغې باندې د اور لمبه او انګار وریږي، پخوا له دې نه دومره سختي او ساتنه او مخ نیونه نه وه، پیریان او شیطانان به اسمان ته نژدې په پټ ځای کې کېناستل، او د یوه لوري او بل لوري څخه به يې څه خبرې اورېدلې، مګر اوس دومره سختي او انتظام او لار نیونه شته، چې هر څوك د اورېدلو خیال وکړي؛ سمدلاسه پرې شهاب ثاقب ډك مردك اوري، او د هغوی تعاقب کیږي، دا بحث پخوا له دې نه د حجر په سورت او نورو ځایونو کې تېر شوی دی، هلته دې وکتل شي !.

وَّاَنَّا لَا نَدْرِیْۤ اَشَرٌّ اُرِیْدَ بِمَنْ فِی الْاَرْضِ اَمْ اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ۟ۙ﴿۱۰﴾

او بېشکه مونږ نه پوهیږو (چې دغه منع کېدل څمونږ له اسمانه) آیا شر بد دی چې اراده کړی شوې ده په هغه چا باندې چې په ځمکه کې دي؟ یا اراده کړې ده په دوی باندې رب د دوی د رُشد د لار ښوونې.

**تفسیر:** یعنې دا نوي انتظامات او د لارو ټینګونه الله تعالی ته ښه معلومه ده چې ولې شوي دي؟ آیا پر دوی د کوم شر اراده شوې، او که د الله تعالی له خوا د دوی په هکله د خیر او هدایت اراده شوې.

وَّاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ وَمِنَّا دُوْنَ ذٰلِكَ ؕ كُنَّا طَرَآئِقَ قِدَدًا ۟ۙ﴿۱۱﴾

او بېشکه مونږ چې یو ځیني له مونږ څخه نېکان دي (پس له اورېدلو د قرآن) او ځیني له مونږ غیر له دوی دي، وو مونږ ناست پر لارو مختلفو (د ادیانو).

**تفسیر:** یعنې د قرآن مجید له نزول څخه پخوا هم ګرد پیریان په یوه لاره نه تله، ځیني يې ښه او ښایسته وو، او ډېر يې بدکار او بدرنګ وو، په هغوی کې هم فرقې او جماعتونه دي، ځیني مشرکان، ځیني عیسایان، ځیني یهودان او نور دي، او په عملي ډول باندې د هر یوه د عمل لارې بېلې او فکر، عقیده جلا ده، وروسته له هغه چې قرآنکریم راغی، د هغه ښوونه د اختلافاتو او تفرقو لرې کول دي، زیاتره پیریان مسلمانان شول، او ځیني همغسې پاتې دي، څکه چې داسې خلق چېرې پیدا کیږي، چې ټول د حق په منلو کې لاسونه سره یو کړي، او په یوه سمه لاره باندې لاړ شي، نو هرومرو اوس هم د هغوی په منځ کې اختلاف او جګړه شته.

وَّاَنَّا ظَنَنَّاۤ اَنْ لَّنْ نُّعْجِزَ اللّٰهَ فِی الْاَرْضِ وَلَنْ نُّعْجِزَهٗ هَرَبًا ۟ۙ﴿۱۲﴾

او بېشکه مونږ یقین مو کاوه چې له سره به مونږ عاجز نه کړو الله په ځمکه کې (چې ترې پټ او خلاص شو) او له سره به مونږ نه کړو عاجز دغه (الله) په تېښتې سره (که ترې وتښتو).

**تفسیر:** یعنې که مونږ قرآن ونه مانه د الله تعالی له سزا څخه نشو ځان ژغورلی، نه په ځمکه کې چېرې ترې پټېدی شو، نه دې خوا نه هغې خوا ترې تښتېدلی یا په هوا کې الوتلی شو.

وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعۡنَا الۡهُدٰۤی اٰمَنَّا بِهٖ ؕ

او بېشکه مونږ کله چې واورېد هدايت (د قرآن)؛ نو ايمان راوړ مونږ پر هغه.

**تفسير:** يعنې مونږ لره د فخر موقع ده، چې په پيريانو کې له ګردو څخه پخوا مونږ قرآن واورېد، او بې له ډيله مو ومانه، او په ايمان راوړلو کې مو يوه شېبه ځنډ ونه کړ.

فَمَنۡ یُّؤۡمِنۡۢ بِرَبِّهٖ فَلَا یَخَافُ بَخۡسًا وَّلَا رَهَقًا ۙ﴿۱۳﴾

نو هغه چې ايمان راوړي په رب خپل باندې؛ نو نه ويريږي له نقصان (د خپلې نېکۍ) او نه له زيادت څخه (په تزييد د بدۍ).

**تفسير:** يعنې رښتين ايماندار لره د الله تعالى له لوري هيڅ يوه اندېښنه نشته، او نه نقصان وررسيږي، نه يې کومه نيکي او محنت خوشې ځي، او نه بل څوک پرې څه زيادت او زبردستي کولی شي، چې د بل جُرم او ګناه په هغه باندې ورواړوي، لنډه يې دا چې ايمانداران له هر نقصان، تکليف، ذلت او رُسوايي او نورو څخه مأمون او مصون دي.

وَّاَنَّا مِنَّا الۡمُسۡلِمُوۡنَ وَمِنَّا الۡقٰسِطُوۡنَ ؕ فَمَنۡ اَسۡلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوۡا رَشَدًا ﴿۱۴﴾ وَاَمَّا الۡقٰسِطُوۡنَ فَكَانُوۡا لِجَهَنَّمَ حَطَبًا ﴿۱۵﴾

او بېشکه مونږ چې يو ځينې له مونږه مسلمانان دي، او ځينې له مونږ ظالمان کاږه دي (له لارې د حقه په کفر سره)، نو هر هغه چې (الله ته) غاړه کيږدي (او ايمان راوړي)؛ نو دوی قصد کړی دی د سمې صافې لارې. او هر چې کږېدونکي دي له سمې لارې؛ نو وي به دوی دوزخ لره لرګي د (سوځولو).

**تفسير:** يعنې د قرآن له نزول څخه وروسته په مونږ کې دوه ډوله خلق دي، يو هغه چې د الله تعالى پيغام اوري، او د هغه د احکامو په مقابل کې غاړه ږدي او مسلمانيږي، دوی همغوی دي چې د حق په تلاش کې برياليان شوي دي، او د خپل تحقيق، تفحّص، او تعمّق په وسيله سمې لارې ته رسېدلي دي، بله هغه د بې انصافانو ډله ده چې کږه لاره يې خوښه کړې، او د بې انصافی له لورې د خپل پروردګار احکام دروغ بولي، او د هغه له حکم منلو څخه انحراف کوي، دا هغه کسان دي چې هغوی ته د دوزخ او د جهنّم خس وايه شي.

**تنبيه:** تر دې ځای پورې د مسلمانانو پيريانو د هغه کلام نقل وو، چې هغوی خپل قوم ته کړی وو، وروسته له دې الله تعالى د خپل لورې څخه د نصيحت څو خبرې ارشاد فرمايي:

وَّاَنۡ لَّوِ اسۡتَقَامُوۡا عَلَی الطَّرِیۡقَةِ لَاَسۡقَیۡنٰهُمۡ مَّآءً غَدَقًا ﴿۱۶﴾ لِّنَفۡتِنَهُمۡ فِیۡهِ ؕ

او (بله وحي راغلې ده ماته چې) که دا (خلق اهل د مکې) برابر شي پر طريقه (سمې لارې د اسلام)؛ نو هرومرو به وڅښوو دوی ته اوبه ډېرې (پس له قحطه) تر څو وازمويو مونږ دوی په دغه (نعمت) کې.

**تفسير:** يعنې که پيريان او انسانان په سمه لاره باندې تلل؛ نو مونږ به هم د ايمان او اطاعت په ظاهري او باطني خوږو او برکاتو سره دوی خړوبول، او په هغه کې به هغه هم د هغوی ازموينه مقصد وه، چې د دې نعمتونو څخه د منتفع کېدلو په وخت کې دوی څومره شکر اداء کوي، او په طاعت کې ښه ترقي او زيادت ليدل کيږي؟ يا په کفران د نعمت کې اخته شوي هغه اصلي سرمايه او پانګه هم له لاسه وباسي؟.

وَمَن يُعۡرِضۡ عَن ذِكۡرِ رَبِّهِۦ يَسۡلُكۡهُ عَذَابٗا صَعَدٗا ﴿١٧﴾

او هغه څوک چې مخ واړوي له ذکر (قرآن) د رب خپل؛ نو داخل به یې کړي (الله) عذاب سخت ته.

تفسیر: یعنې که سړی د الله تعالی له ذکر او یاده مخ واړوي؛ هغه ته به هیڅ ډاډینه او خوشالي نه په برخه کیږي، او تل به د هغه تنګ په داسې یوه لاره باندې وي چې له پرېشانی او له ربړو څخه ډک وي، او عذاب یې ګړی په ګړی زیادت مومي.

وَأَنَّ ٱلۡمَسَٰجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدۡعُواْ مَعَ ٱللَّهِ أَحَدٗا ﴿١٨﴾

او (بله وحي راغلې ده ماته) دا چې بېشکه مسجدونه لپاره (د یاد) د الله دي، نو مه بولئ تاسې (په دغو مساجدو کې) سره له الله بل هیڅوک.

تفسیر: اګر که الله تعالی ګرده ځمکه د محمّدي امّت لپاره مسجد جوړه کړې ده، لیکن په خصوصیت سره هغه ځایونه چې د مسجدونو په نامه خاص د الله تعالی د عبادت لپاره جوړ شوي دي، هغه لره زیات امتیاز دی، چې هلته تللئ پر ته له الله تعالی د بل چا بلل لوی ظلم او ډېر بد شرک دی، مطلب دا چې د خالص واحد الله په لوري راځئ !، او له هغه سره بل څوک مه شریکوئ، او له هغه سره یې مه بولئ !، خصوصا په مسجدونو کې چې د الله تعالی په نامه او یواځې د هغه د عبادت لپاره جوړ شوي دي.

وَأَنَّهُۥ لَمَّا قَامَ عَبۡدُ ٱللَّهِ

او بله (وحي کړی شوې ده ماته) دا چې بېشکه کله چې ودرېد (لمانځ ته) بنده د الله (محمد).

تفسیر: یعنې کامل بنده محمد صلی الله تعالی علیه وعلی آله وأصحابه وسلّم.

يَدۡعُوهُ كَادُواْ يَكُونُونَ عَلَيۡهِ لِبَدٗا ﴿١٩﴾

چې باله یې دغه (الله)؛ نژدې وو دغه (پیریان) چې کېدل به پر ده باندې سر په سر پرېوتونکي (له جهته د ازدحامه).

تفسیر: یعنې کله چې محمد صلی الله علیه وسلم ودرېږي، او پاک قرآن لولي؛ نو خلق ډلي ډلي په ګڼ ډول پر دوی باندې تویېږي، مؤمنانو د شوق، د مینې او رغبت لامله قرآن اورېده، او کافرانو او منافقانو د عناد او عداوت په سبب پر دوی باندې هجوم کاوه، ځینې مفسّرین د دې آیت دغسې ترجمه کوي: او بله وحي شوې ده ماته چې په تحقیق سره کله چې پورته شو لمانځه ته په بطن نخله کې بنده د الله محمد صلی الله علیه وسلم چې باله یې الله، او عبادت یې ورته کاوه، او قرآن یې لوست، او پیریانو قرائت د ده واورېده؛ نو نژدې وو دوی چې کېدل به په ده باندې پرېوتونکي له جهته د ډېر شوقه او د ازدحامه.

قُلۡ إِنَّمَآ أَدۡعُواْ رَبِّي وَلَآ أُشۡرِكُ بِهِۦٓ أَحَدٗا ﴿٢٠﴾

ووایه (ای محمده دوی ته) په تحقیق زه بولم (عبادت کوم د) رب خپل، او شریک نه نیسم له دغه (الله) سره هیڅوک.

تفسیر: یعني کافرانو ته ووایه چې تاسې د مخالفت په لاره کې دومره هجوم او بیړه ولې کوئ، کومه خبره داسې ده چې په هغې باندې تاسې خفه یئ، زه کومه خرابه او نامعقوله خبره نه کوم، زه خو یواځې خپل رب بولم، او هیڅوک د هغه شریک نه ګڼم، نو په دې کې د جنګ او جګړې سبب څه شی دی؟.

قُلْ إِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا رَشَدًا ﴿٢١﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه زه مالک نه یم، نه توانېږم تاسې لره د څه ضرر (ګمراهی) او نه د څه رشد خیر رسولو (ځکه چې پخپله الله هم ضارّ او هم نافع دی).

تفسیر: یعنې دا ځما په اختیار کې نه ده، چې تاسې په سمه صافه لاره راولم، او که رانشئ تاسې ته کوم ضرر او نقصان دورروسوم، ګردې ښېګڼې او خرابی، هدایت او ضلالت د الله تعالی په واک کې دی.

قُلْ إِنِّي لَن يُجِيرَنِي مِنَ اللَّهِ أَحَدٌ وَلَنْ أَجِدَ مِن دُونِهِ مُلْتَحَدًا ﴿٢٢﴾

ووایه (ای محمده ! دوی ته) بېشکه زه چې یم هر ګز به مې خلاص نه کړي له (عذابه) د الله (که چېرې مې په عذاب کړي) هیڅوک او له سره به بیا نه مومم بې له دغه (الله) څخه ځای د پناهی.

تفسیر: یعنې تاسې ته ځما ګټه رسول چېرې ! ځما خپله ګټه او زیان هم ځما په قبضه او واک او لاس کې نه دی، که بالفرض زه پخپلو فرائضو کې څه سستي او تقصیر وکړم؛ نو هیڅوک مې د الله تعالی له عذابه نشي ژغورلی، او هیڅ یو ځای هم داسې نشته چې هلته وتښتم، او پناه حاصله کړم.

إِلَّا بَلَاغًا مِّنَ اللَّهِ وَرِسَالَاتِهِ

مګر خو (مالک یم د) تبلیغ (د شریعت تاسو ته) له (طرفه د) الله او (تبلیغ د) رسالت د دغه (الله).

تفسیر: یعنې د الله تعالی له لوري پیغام راوړل، او هغه بندګانو ته رسول همدا یو شی دی چې ځما په اختیار کې دی، او همدا فرض دی چې د هغه د اداء کولو لامله زه د الله تعالی په پناه او حمایت کې پاتې کېدی شم.

وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴿٢٣﴾

او هر هغه څوک چې نافرماني کوي د الله او د رسول صلی الله علیه وسلم د دغه (الله)؛ نو بېشکه هغه لره دی اور د دوزخ حال دا چې تل به وي په هغه کې همېشه (چې نه به خلاصیږي ترې هیڅېرې).

تفسیر: یعنې زه د تاسې د ګټې او د زیان مالک نه یم، خو دومره تاسې ته وایم، چې د الله تعالی او ځما د خبرو د نه منلو په سبب تاسې ته ضرور زیان رسیږي.

حَتَّىٰ إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا وَأَقَلُّ عَدَدًا ﴿٢٤﴾

تر هغه پورې چې ووینی دوی هغه (عذاب) چې وعده یې ورسره شوې ده؛ نو ژر به پوه شي دوی (په وخت د تعذیب کې چې) څوک دی ډېر ضعیف له جهته د مددګاره، او ډېر لږ له پلوه د شمېره (آیا مؤمنان دي که کافران، بلکه کافران دي).

تفسیر: یعنې تاسې چې سره راغونډېږئ، او پر مونږ باندې هجوم راوړئ، او داسې ګڼئ چې د محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه د ملګریو قوّت او شمېر لږ دی، او ورسره ضعیفان او کمزوران هم دي، نو کله چې د وعدې وخت

راشي؛ هلته به درښکاره شي چې د چا ملګري کمزوري او شمېر يې لږ وو؟ وويل بعض کافرانو چې: دا وعده به څه وخت وي؟ نو الله فرمايي:

قُلْ إِنْ أَدْرِيٓ أَقَرِيبٌ مَّا تُوعَدُونَ أَمْ يَجْعَلُ لَهُۥ رَبِّيٓ أَمَدًا ﴿٢٥﴾

ووايه (اى محمده دوى ته) نه پوهېږم چې آيا نژدې دى هغه (عذاب) چې وعده يې درسره کړې شوې ده او که يې مقرره کړې ده هغه لره رب ځما يو زمانه.

تفسير: يعنې د دې خبرې علم ماته نه دى راکړې شوى، چې هغه وعده ژر راتلونکې ده؟ که څه مدّت څخه وروسته؟ ځکه چې د قيامت وخت الله تعالى چاته نه دى ټاکلى، او نه يې چاته ورښکاره کړى دى، دا له هغو پټو خبرو څخه دى چې پرته له الله تعالى ځنې بل هيڅوک په هغې باندې نه دي خبر.

عَٰلِمُ ٱلْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِۦٓ أَحَدًا ﴿٢٦﴾ إِلَّا مَنِ ٱرْتَضَىٰ مِن رَّسُولٍ فَإِنَّهُۥ يَسْلُكُ مِنۢ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِۦ رَصَدًا ﴿٢٧﴾

(الله) عالم دى پر غائبو (اشياوو) باندې؛ نونه خبروي په غيبو خپلو باندې هيڅوک. مګر هغه څوک چې راضي وي ترې (او غوره کړى يې وي په اطلاع د غيبياتو) له رسول خپل څخه، نو بېشکه هغه (الله) روانوي په مخ د هغه (رسول محمد) کې او وروسته له هغه ځنې ساتونکي څوکيداران له هر طرفه (له ملائکو).

تفسير: يعنې د خپلو پټو خبرو احوال هيچا ته نه ورکوي، هو ! پيغمبرانو ته په همغه اندازه چې د هغو له شان او منصب سره لايق او وړ وي؛ د وحي په وسيله خبر ورکوي، له دې سره د پرښتې پيرې او څوکى هم وي، تر څو يې کوم شيطان وانه وري، او څه مداخله په کې ونه کړي، او د رسول صلى الله عليه وسلم نفس هم په هغه باندې په ښه ډول سره وپوهيږي.

لِّيَعْلَمَ أَن قَدْ أَبْلَغُوا۟ رِسَٰلَٰتِ رَبِّهِمْ

تر څو چې پوه شي (رسول يا الله په علم ظهور سره) په دې چې بېشکه پوره رسولى دى (جبريل او نورو پرښتو ملګرو د هغه يا رسولانو) پيغامونه د رب خپل (بې له نقصانه او تزييده).

تفسير: يعنې ځکه زبردست انتظامات کاوه شي، چې الله تعالى دا راښکاره کړي چې پرښتې پيغمبرانو ته او پيغمبرانو نورو بندګانو ته دا پيغامونه په ښه ډول سره بې له تزييده او بې له تنقيصه ورسوي.

وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ وَأَحْصَىٰ كُلَّ شَىْءٍ عَدَدًۢا ﴿٢٨﴾

او نيوونکى دى (علم د الله او چاپېر دى) په هغه (علم) باندې چې په نزد د دغو (ملائکو او رسولانو) دى، او شمېرلى ساتلى دى (الله) هر شى د شمېر او عدد له مخې (په ډېر ښه انضباط سره).

تفسير: يعنې هر شى د هغه الله تعالى تر کتنې او نګرانى لاندې دى، هيڅوک د دې خبرې طاقت نه لري چې د الله تعالى په وحي کې څه تغيير او تبديل او قطع او برېکړه وکړي، او دا پيرې او څوکى د حکومت د شان د اظهار او د محافظت د اسبابو د سلسلې لپاره ډېرو حکمتونو لره نيوونکې دي، که نه هغه لوى ذات چې په علم او قبضه کې يې هر شى شته؛ داسې شيانو ته هيڅ احتياج نه لري، او نه ورته اړ دى.

تمّت سورة الجنّ بفضله و کرمه، فلله الحمدُ والمنّة.

# سُورَةُ المُزَّمِّل

«د (المزمّل) سورت مکّي دی، پرته له (١٠، ١١، ٢٠) آیتونو چې مدني دي، شل آیته او دوه رکوع لري، په تلاوت کې (٧٣) او په نزول کې (٣) سورت دی، وروسته د «القلم» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُزَّمِّلُ ١

ای نغښتونکیه د ځان په جامه کې (له هیبته د وحي).

تفسیر: دا سورت له ابتدائي سورتونو څخه دی، چې په مکّه کې نازل شوی دی، په صحیحو روایاتو کې دي چې په شروع کې کله چې د وحي له ثقل او دهشته د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم بدن رېږدېده، نو دوی خپلې کورنۍ ته وفرمایل: «زمّلوني زمّلوني ! په کالیو کې مي ونغاړئ !، په کالیو کې مي ونغاړئ !»، لکه چې دوی په کالیو کې ونغښتل شول، الله تعالی په دې سورت کې او په لاندني سورت کې ځمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم په همدې نامه سره یادوي، او په ځینو نورو راویتونو کې راغلي دي چې قریش په «دار الندوة» کې ټول شوي وو، او د دوی په نسبت یې مشورې سره کولې، چې د دوی له حال سره مناسب کوم لقب ورکړ شي، ځینو یې «کاهن» ځینو یې «مجنون» ځینو یې «ساحر» وویل، خو یو هیڅ یوې خبرې باندې د دوی د رأیو اتفاق حاصل نشو، په پای کې د «ساحر» په لوري یې رجحان حاصل شو، کله چې ځمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم له دې جرګې څخه خبر شو، نو خفه په کالیو کې یې خپل ځان ونغښتو، کېناست لکه چې په عام ډول سره د غم او خپګان په وخت کې هم داسې وضعیت له ښه سړیو څخه لیده کېږي، نو په دې مناسبت سره حق تعالی د تأنیس او ملاطفت لپاره په دې عنوان سره ورته خطاب فرمایي.

قُمِ ٱلَّيۡلَ إِلَّا قَلِيلٗا ٢

ودرېږه (لمانځه ته) په شپه کې مګر خو په لږه (له ټولې شپې نه).

تفسیر: یعنې که کومه شپه اتفاقًا ونه شوه؛ نو معاف دي، د ډېرو مفسّرینو په نزد د ﴿إِلَّا قَلِيلٗا﴾ مطلب دا دی چې: د شپې له مخې د الله تعالی د عبادت لپاره ودرېږې، هو ! که د شپې په کومه لږه برخه کې هوسا کېږې نو څه مضایقه نشته، غالبًا له لږو څخه به مطلب دلته نیمایي وي، ځکه شپه چې د هوسایي لپاره ده، کله چې نیمه یې په عبادت باندې تېره شوه؛ نو په هغه اعتبار پاتې نیمې ته یې لږ ویل؛ موزون ښکاري، ودرېږه ای محمده لمانځه ته په لږه برخه د شپې کې.

نِّصۡفَهُۥٓ أَوِ ٱنقُصۡ مِنۡهُ قَلِيلًا ٣ أَوۡ زِدۡ عَلَيۡهِ

(چې هغه نیمه د شپې ده) یا لږه کړه له هغې (نصفه) لږ څه (چې ثلث دی). یا زیاته کړه په هغې (نیمې شپې) باندې (چې ثلثان دي).

تفسیر: یعنې له نیمې شپې څخې څه لږه چې تر درییمې برخې پورې رسېږي، یا له نیمایي څخه څه زیات چې تر دوو ثلثو پورې ورسېږي؛ په قرینې د هغې وینا د الله تعالی چې وروسته له دې نه یې داسې لولو: ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَعۡلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدۡنَىٰ مِن ثُلُثَيِ ٱلَّيۡلِ وَنِصۡفَهُۥ وَثُلُثَهُۥ﴾ الآیة ـ.

وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ۝

او ښکاره واضح لوله قرآن په ښکاره واضح لوستلو سره (چې وشمېرلی شي حروف يې).

تفسير: يعنې په تهجّد کې قرآن په وضاحت سره لوله، چې يو يو توری يې په صاف ډول سره وپوهېدی شي، ځکه چې له داسې لوستلو څخه فهم او تدبّر ته ډېر مدد رسيږي، او په زړه باندې زيات اثر کوي، او په شوق او ذوق کې زيادت راولي.

اِنَّا سَنُلْقِيْ عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيْلًا ۝

بېشکه مونږ غورځوونکي يو پر تا باندې قول درونډ (قرآن، ځکه چې مشتمل دی په اوامرو او نواهيو، سخت دی پر مکلفينو باندې).

تفسير: مطلب مې دا دی چې وروسته له دې نه به پر تاسې باندې پرله پسې مونږ قرآن کريم راښکته کوو، چې د خپل قدر او منزلت په اعتبار ډېر قيمتدار او وزندار او د خپلو کيفياتو او لوازمو په اعتبار ډېر درونډ او ګران بار دی، په احاديثو کې راغلي دي چې د قرآن کريم د راښکته کېدلو په وخت کې پر رسول أکرم باندې ډېره سختي او تکليف تېرېده، د يخنی په موسم کې هم دوی خولې کېدل، که د وحي په وخت کې پر هر څاروي باندې سور وو؛ هغه به د دوی د سورلی توان نه درلود، يو ځلې د رسول أکرم صلی الله عليه وسلم پتون د زيد بن ثابت پر پتون باندې وو، په دې وخت کې وحي نازله شوه، زيد بن ثابت ته داسې محسوسه شوه ګواکې د هغه پتون له ډېره باره ماتيږي.

اِنَّ نَاشِئَةَ الَّيْلِ هِيَ اَشَدُّ وَطْاً وَّاَقْوَمُ قِيْلًا ۝

بېشکه پورته کېدل د شپې (له خوبه) دغه (پاځېدل) ډېر سخت دي له پلوه د مشقّته پايمال کولو د نفس (يا له حيثيته د موافقته د سمع له قلبه سره)، او ډېر ښه ثابت محکم دي (دا پورته کېدل له خوبه لپاره د ويلو د قرآن).

تفسير: يعنې د شپې له مخې له خوبه پاځېدل کوم آسان کار نه دی، ډېر درونډ رياضت او نفس وژل دي، او له هغه څخه نفس او هوس پايمال کيږي، او خوب او آرام او نورې نفساني غوښتنې خرابيږي، او د شپې په منځ کې دعاء او د الله تعالی ياد په ډېر ښه ډول سره کاوه شي، زړه او خوله سره ملګرتيا کوي، اوهغه خبرې چې له ژبې څخه راووځي؛ په ذهن کې ښه ځای نيسي، ځکه چې په دې وخت کې شورماشور نه وي، او د الله تعالی له نزول څخه د دنيا په اسمان کې زړه ته يو راز عجيب سکون، او قرار، لذّت او د اشتياق کيفيت ورميسّر او حاصليږي.

اِنَّ لَكَ فِى النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا ۝

بېشکه تا لره (ای محمده !) په ورځې کې شُغل دی په کارونو اوږدو کې (له مخلوق سره).

تفسير: يعنې په ورځ کې د خلقو پوهول او نور راز راز مشاغل او چارې ستاسې په مخ کې دي، اګر که هغه هم بالواسطه عبادت دی، خو سره له هغه هم د پروردګار د بلا واسطې عبادت او مناجات لپاره د شپې اوقات تاکل هم لازم دي، که د شپې د مشغولتيا لامله ځينې د شپې چارې پاتې کيږي؛ نو د هيڅ فکر کولو ځای نه دی، او د هغو تلافي د ورځې له مخې هم کېدی شي.

وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ إِلَيْهِ تَبْتِيلًا ۝٨

او یادوه نوم د رب خپل او جدا شه له هر شي څخه په لوري د دغه (رب خپل) جدا کېدل کامل.

تفسیر: یعنې علاوه د شپې له قیامه د ورځې له مخې هم اګر که په ښکاره ډول له مخلوقاتو سره معاملات او علایق ساتلی کیږي، خو په زړه کې د هغه الله تعالی علاقه ډېره زیاته وساتئ !، او په تللو او راتللو ناستې ملاستې کې هم د الله تعالی په یاد او فکر کې مشغول اوسئ !، پرته له الله تعالی نورو شیانو ته مه متوجه کېږئ !، بلکه له ګردو تعلّقاتو څخه ځان وساتئ !، او یوازې له هغه سره خپل تعلّق او علاقې ټینګې ولرئ !.

رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ

(همدغه الله) رب د مشرق د لمر ختو دی او (رب) د مغرب لمرپرېوتو دی.

تفسیر: مشرق د ورځې او مغرب د شپې نښه ده، ګواکې اشاره یې و کړه چې شپه او ورځ دواړه د هغه مشرق او مغرب د مالك أجلّ وأعلى شأنُه وأعظم برهانُه په رضا غوښتلو سره ښایي صرف کړی شي.

لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلًا ۝٩

نشته بل هیڅوك حقاني معبود مګر خو همدی دی یوازې، نو ونیسه دغه (الله) وکیل کار ورسپارلی شوی، کار جوړوونکی لپاره د امورو خپلو.

تفسیر: یعنې بندګي هم د هغه وکړئ !، او توکل هم پر همغه باندې ښایي چې سړی ولري !، کله چې هغه وکیل او کار چلوونکی وي؛ نو له نورو څخه د جلا اوسېدلو څخه هیڅ وېره نه ده پکار.

وَاصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ

(نو فرمایي الله) او صبر کوه (ای محمده !) په هغه څه باندې چې وایي یې دوی (ځما او ستا په حق کې).

تفسیر: یعنې کفّار تاسې ته ساحر، کاهن، مجنون، مسحور او نور وایي، او ماته د ښځې او ولد نسبت کوي، تاسې داسې خبرې په ډېر صبر او استقلال سره واورئ !، تحمل وکړئ !.

وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيلًا ۝١٠

او پرېږده دوی په پرېښوولو نېکو سره.

تفسیر: ښه پرېښوول دا دي چې ملامتیا په کې نه وي.

وَذَرْنِي وَالْمُكَذِّبِينَ أُولِي النَّعْمَةِ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ۝١١

او پرېږده ما او دروغ ګڼونکي حق لره چې خاوندان د نعمت دي، او مهلت ورکړه دوی ته (مهلت) لږ.

تفسير: يعنې د حق او صداقت د دروغ ګڼونکو معامله چې په دنيا كې په عيش او آرام دي؛ ماته وسپارئ !، زه به له هغوى سره پوهېږم، مګر لږ وروسته.

إِنَّ لَدَيْنَآ أَنكَالًا وَجَحِيمًا ﴿۱۲﴾ وَطَعَامًا ذَا غُصَّةٍ وَعَذَابًا أَلِيمًا ﴿۱۳﴾

بېشكه په نزد ځمونږ دي (لپاره د منكرانو په آخرت كې) ځنځيرونه درانه او اور سوځوونكى. او طعام نښتونكى په مرى كې (چې د زقّوم او ضريع ونه ده) او عذاب دردناك.

تفسير: يعنې عذاب دردناك د مارانو، لړمانو، او الله پوهيږي په نورو څه څه راز عذابونو. (العياذ بالله).

يَوْمَ تَرْجُفُ الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيبًا مَّهِيلًا ﴿۱۴﴾

(دا واقع عذابونه په هغې) ورځې كې دي چې وخوځېږي ولړځيږي ځمكه او غرونه، او شي به دا غرونه لكه د شګو ډېرى روانې شوې (تيت پيت ـ خواره واره له ډېره هيبته).

تفسير: يعنې د هغه عذاب تمهيد له هغه وخت راهيسې شروع كيږي، كله چې د غرونو بېخونه سست شي، او په خوځېدو او لړځېدو سره ټوټې ټوټې والوځي، او داسې راښكاره شي لكه د شګې ډېرى چې څوك به قدم پرې نشي ايښودى.

إِنَّآ أَرْسَلْنَآ إِلَيْكُمْ رَسُولًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ

بېشكه مونږ لېږلى مو دى تاسې ته (اى محمدي امّته !) رسول (محمد) شاهد په (اعمالو د) تاسې باندې (په ورځې د قيامت كې).

تفسير: يعنې دا پيغمبر به د الله تعالى په مخ كې شاهدي وركوي، چې كوم سړي د الله تعالى وحدانيت او د انبياوو رسالت او شريعت منلى دى؟ او كوم سړي نه دى منلى؟.

كَمَآ أَرْسَلْنَآ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولًا ﴿۱۵﴾

لكه چې لېږلى وو مونږ فرعون ته رسول (موسى عليه السلام).

تفسير: يعنې الله تعالى د موسى عليه السلام په شان تاسې ته هم اى محمده صلى الله عليه وسلم مستقل دين او عظيم الشأن كتاب دركړى دى.

فَعَصَىٰ فِرْعَوْنُ الرَّسُولَ فَأَخَذْنَاهُ أَخْذًا وَبِيلًا ﴿۱۶﴾

نو عصيان نافرماني وكړه فرعون له هغه رسول (موسى عليه السلام) څخه؛ پس ونيو مونږ دغه (فرعون) په نيولو سختو سره.

تفسير: كله چې الله تعالى د موسى عليه السلام منكران په سختۍ سره ونيول، او د غرق له لارې يې حرق ته واستول، نو د محمد صلى الله عليه وسلّم منكرين به ولې نه نيسي، چې له ګردو پيغمبرانو ځنې افضل او برتر دى.

فَكَيْفَ تَتَّقُونَ إِن كَفَرْتُمْ يَوْمًا يَجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِيبًا ﴿۱۷﴾

پس څرنګه به وساتئ (ځانونه خپل) كه چېرې كافران منكران شئ (تاسې په دنيا كې) له (عذاب د هغې ورځې څخه (چې له هيبته) به وګرځوي هلكان واړه سپين ږيري (چې ورځ د قيامت ده).

**تفسیر:** یعنې که په دنیا کې خلاص شوئ؛ نو په آخرت کې به څرنګه خلاصېږئ؟ چې د هغې ورځې د ډېر اوږدوالي سختوالي لامله به هلکان زاړه کیږي، که څه هم په حقیقت کې خو هلکان نه زاړه کیږي، خو د هغې ورځې د سختوالي اوږدوالي اقتضاء به همداسې وي.

إِلسَّمَآءُ مُنفَطِرٌۢ بِهِۦ ۚ كَانَ وَعْدُهُۥ مَفْعُولًا ﴿١٨﴾

اسمان به وچوي (په سبب د هیبت شدّت د دغې ورځې) ده وعده د هغه (الله په راتللو د دغې ورځې سره) کېدونکې خامخا.

**تفسیر:** یعنې د الله تعالی وعده ضروري ده، اګر که تاسې هغه ډېره لرې وګڼئ، او غیر ممکنه یې وبولئ.

إِنَّ هَٰذِهِۦ تَذْكِرَةٌ ۖ فَمَن شَآءَ ٱتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِۦ سَبِيلًا ﴿١٩﴾

بېشکه دا (آیتونه) ویروونکي تذکره پند دی (خلقو لره)، نو هر هغه څوک چې اراده کوي (چې) نیسي رب خپل ته لاره (د ایمان په دغه نصیحت سره؛ ودې نیسي).

**تفسیر:** یعنې نصیحت کړی شوی دی، نو اوس که څوک خپله فائده غواړي؛ پر هغه نصیحت باندې دې عمل وکړي !، او خپل پروردګار ته دې ځان ورنژدې کړي، او ملجأ دې ونیسي !، ځکه چې لاره خلاصه ده، او هیڅ ممانعت نشته، او نه له هغه څخه الله تعالی ته څه فائده رسیږي، بلکه په هغه کې ستاسې ډېرې فائدې او ګټې دي، نو پر صافه سمه لاره لاړ شئ !.

**تنبیه:** د شپې د ویښېدلو امر چې د دې سُورت په شروع کې یاد شو؛ تقریبًا تر یوه کال پورې وروسته له هغه هغه آیت په دغه راتلونکي آیت سره منسوخ شو.

إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُومُ أَدْنَىٰ مِن ثُلُثَيِ ٱلَّيْلِ وَنِصْفَهُۥ وَثُلُثَهُۥ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ ٱلَّذِينَ مَعَكَ ۚ

بېشکه رب د تا عالم دی په دې بېشکه ته چې یې پاڅېږې لمانځه ته په شپه کې لږ له دوو برخو د شپې څخه، او نیمه برخه د شپې، او دریمه برخه د شپې، او (همدارنګه پورته کېږي لمانځه ته) یوه طائفه له هغو کسانو څخه چې له تا سره دي (په دین کې له مؤمنانو).

**تفسیر:** یعنې الله تعالی ته ښکاره ده چې تاسې او ستاسې ملګرو د دې امر تعمیل په ښه شان سره کړی دی، کله مو نیمه شپه کله مو دوه برخې کله مو تر دریو برخو د شپې پورې د الله تعالی عبادت کړی دی لکه چې په روایاتو کې راغلي دي، چې د لویو اصحابو رضي الله تعالی عنهم پښې د شپې د ډېرو ودرېدلو لامله پړسېدلې وې.

وَٱللَّهُ يُقَدِّرُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ۚ عَلِمَ أَن لَّن تُحْصُوهُ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ۖ فَٱقْرَءُوا۟ مَا تَيَسَّرَ مِنَ ٱلْقُرْءَانِ ۚ

او الله اندازه کوي ساتي شپه او ورځ، پوه دی (الله) په دې، شان دا دی چې هر ګز به طاقت ونه لرئ تاسې د هغې (شپې چې پورته کېږئ په کې په هغه ټاکلي مقرر کړي وخت)؛ نو معافي یې ولېږله پر تاسو باندې، پس ولولـئ (په لمانځه کې) هومـره چې آسان وي له قرآنه.

**تفسير:** يعني د شپې او د ورځې پوره اندازه او مېچ الله تعالى ته معلوم دى، همدى په يوې ځانته خاصې اندازې سره كله شپه او كله ورځ اوږدوي، لنډوي او برابروي يې، خپل ګرد بندګان د هغوى د خوب او د غفلت په وخت كې چې كله نيمه او كله درې برخې او كله دوه برخې او كله پر ګردې شپې پورې اوږديږي، په ښه ډول سره يې ساتي او حفاظت يې كوي، په تېره بيا په هغو وختونو كې چې لكه اوس د ګړيو او ګړيالونو او نورو سامان او اسباب نه وو، او د وخت د معلومولو كار دومره آسان نه وو، اصحابو ته يې داسې توفيق وباښه چې پوره پخپل وخت باندې پخپل عبادت ودريږي، دا يواځې د هغه له مهرباني څخه وو، اګر كه ځينې كسان ګرده شپه له ډې وېرې څخه نه ويدېدل، چې په ټاكلي وخت به ويښ نشم، او د تهجّد لمونځ او د شپې قيام به راڅخه پاتې كيږي، نو د دې تكاليفو لامله الله تعالى پخپل رحمت سره د معافى امر هغوى ته ولېږه، او ويې فرمايل چې: تاسې په دې ډول سره تر آخره پورې نشئ دربدلى، نو ځكه هر چا لره چې د ويښېدلو توفيق وي؛ پادې خيږي !، او هر څومره يې چې زړه غواړي؛ لمونځ دې وكړي !، او هر څومره يې چې خوښه وي؛ هومره قرآن دې په كې ولولي !، نو اوس پر محمّدي امّت باندې نه د تهجّد لمونځ فرض دى، او نه يې د وخت مقدار او نه د قرآن شريف د تلاوت او د لوست انداز يې ټاكلى شوى دى.

عَلِمَ اَنْ سَيَكُوْنُ مِنْكُمْ مَّرْضٰى ۙ وَاٰخَرُوْنَ يَضْرِبُوْنَ فِى الْاَرْضِ يَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ ۙ وَاٰخَرُوْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۖ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ ۙ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ

پوه دى (الله) شان دا دى چې ژر به شي بعض له تاسې څخنې مريضان ناروغان، او وي به نور له تاسې څخه په سفر، مزل به كوي دوى په ځمكه كې، لټوي به دوى له فضله رزقه د الله، او وي به نور له تاسې څخه چې جنګونه به كوي دوى په لارې د الله كې، نو ولولئ تاسې (په لمانځه كې) هومره چې آسان وي له دغه (قرآنه)، او قائموئ سم ودروئ لمونځ (سره له ټولو حقوقو يې) او وركوئ زكات.

**تفسير:** يعني الله تعالى وليده او ښه ورته معلوم وو چې په تاسې كې به رنځوران او پردېسيان هم وي، چې د خوړو د ګټلو يا د علم د زده كولو يا د نورو لپاره به سفرونه كوي، او هم به غازيان او مجاهدين وي، چې د الله تعالى په لارې كې جنګونه كوي، نو سره له دې حالاتو د شپې ويښېدل او د هغه په احكامو باندې عمل كول به ډېر سخت كار وي، نو ځكه يې هغه پر تاسې باندې تخفيف كړ، او ويې فرمايل چې: په لمانځه كې هومره قرآن چې لوستلى شئ؛ ويې لولئ !، او پر خپلو ځانونو باندې نور زيات څه تكليف وانه اخلئ !، هو ! فرض لمونځونه پر ډېر اهتمام او توجه سره وكړئ !، او له شريعت سره برابر زكات وركوئ !، او د الله تعالى په لاره كې خپل مالونه ولګوئ !.

وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ؕ

او قرض كوئ تاسې له الله سره قرض ښه مال وركوئ په لاره د الله كې (په خوښى له حلالو).

**تفسير:** په پوره اخلاص سره د هغه الله تعالى په لارې كې د هغه له احكامو سره سم مال او شته لګول هم هغه ته د ښه پور وركولو پشان دي، كه بندګانو ته حسنه قرض وركړ شي؛ نو هغه په همدغه عموم كې داخل دى، لكه چې په حديث كې يې فضيلت ثابت شوى دى.

وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ هُوَ خَيْرًا وَأَعْظَمَ أَجْرًا

او هر هغه چې وړاندې کوئ یې لېږئ یې تاسې لپاره د ځانونو خپلو له څه خیر نېکی څخه؛ نو بیا به مومئ تاسې هغه (نېکی) په نزد د الله، دا (پخوا لېږل د حسناتو) خیر ډېره غوره ده او ډېره لویه ده له پلوه د اجر ثواب.

**تفسیر:** یعنې هغه نیکي چې تاسې یې دلته کوئ، د هغه بدل به هلته په ډېر ښه صورت سره مومئ، او ډېر زیات اجر ثواب به تاسې ته له هغه څخه دررسیږي، او داسې یې مه ګڼئ هغه نیکي چې مونږ یې په دنیا کې کوو؛ همدلته ختمیږي به، بلکه هغه ګرد سامان له تاسې څخه د مخه هلته رسیږي، او په عین حاجت او اړتیا کې ستاسې په کار راځي.

وَاسْتَغْفِرُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٠﴾

او ښښنه وغواړئ له الله په هر حال کې، بېشکه الله دی ښه مغفرت کوونکی (د خطیّاتو) ډېر رحم کوونکی دی.

**تفسیر:** یعنې تاسې ګرد شرعي حکمونه په ځای راوړئ !، او بیا د الله تعالی له حضوره معافي وغواړئ !، ځکه هر څومره محتاط سړی چې وي؛ بیا هم له هغه څخه څه نه څه ګناه او خطا کیږي.

تمّت سورة المزمّل بفضل الله ومنّه، فله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ المُدَّثِّر

«د (المدّثر) سورت مکّي دی، (۵۶) آیته او (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۷۴) او په نزول کې (۴) سورت دی، وروسته د (المزمّل) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

يٰۤاَيُّهَا الۡمُدَّثِّرُ ۝١ قُمۡ فَاَنۡذِرۡ ۝٢

ای په جامه کې نغښتونکیه (له هیبته د وحي) پورته شه ! (له ځایه د خوبه خپله). نو وویروه (خلق له عذابه د الله که ایمان را نه وړي).

تفسیر: دلته دې د «المدثّر» په نسبت د «المزمّل» تفسیر دې څمونږ دغه تفسیر کې ولوستله شي، یعنې د وحي له ثقاله او د پرښتو له هیبته نه ښایي چې تاسې وویرېږئ، یا وډار شئ، د تاسې کار خو دا دی چې ګردې هوسایۍ او آرامۍ مو پرې اېښي دوی له الله تعالی څخه وویروئ، او د کفر او د معصیت له خراب انجام څخه یې وډار کړئ.

وَرَبَّكَ فَكَبِّرۡ ۝٣

او رب خپل پس په لويۍ سره یادوه.

تفسیر: ځکه چې د الله تعالی د لويۍ د ویلو او د هغه د عظمت او بزرګۍ له بیانولو څخه د هغه وېره په زړونو کې پیدا کیږي، او د الله تعالی تعظیم او تقدیس داسې یو شی دی چې د هغه معرفت ښایي له ګردو (ټولو) اعمالو او اخلاقو څخه پخوا حاصل شي.

وَثِيَابَكَ فَطَهِّرۡ ۝٤ وَالرُّجۡزَ فَاهۡجُرۡ ۝٥

او کالي (جامې) خپل پاک وساته ! (له پلیتۍ نه، لکه چې ځان دې پاک ساتې). او ګندګي ګناه او بُتان پس ترک کړه (دائم اوسه په ترک یې لکه چې له نورو ګناهونو څخه په څنګ یې !).

تفسیر: د دې سورت په نازلېدلو کې حکم شوی دی چې ګرد مخلوق د خالق په لوري وبلل شي !، بیا د لمانځه او نورو حکم شوی دی، د لمانځه لپاره شرط دی چې کالي پاک وي، او له پلیتۍ څخه ځان وژغورل شي، دا دې چې هغه شیان یې دلته بیان وفرمایل.

دا ښکاره ده: کله چې کالي پاک ساتل له حسي او معنوي نجاستونو څخه ضروري دي؛ نو د بدن پاکي به په طریق اولی سره حتمي او ضروري وي، نو ځکه د هغه د بیان ضرورت پاتې نشو، ځینو عالمانو د کالي له پاک ساتلو څخه له بدو اخلاقو څخه د نفس پاک ساتل مراد کړي دي، او د ګندګۍ له لرې کېدلو څخه دا معنی مرادوي چې د بُتانو له ګندګۍ څخه لرې شئ !، لکه چې تر اوسه پورې لرې یئ.

وَلَا تَمْنُن تَسْتَكْثِرُ ۝٦ وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ۝٧

او مه کوه داسې (لږ) احسان چې بدل یې ډېر غواړې. او لپاره د رب خپل پس صبر کوه (او هیله ـامید ورته ولره، احکامو ته یې منتظر اوسه !).

**تفسیر:** دلته الله تعالی أعظم برهانُه همّت او اولولعزمی راښیي، چې هر شی مال، دولت، علم، لار ښوونه یا نور چې چاته ورکوئ؛ نه ښایي چې د هغه بدل عوض او ونج وغواړئ، یواځې د الله تعالی پر ورکړه باندې شاکر او صابر اوسئ !، او هغه شدائد چې د تبلیغ او دعوت په لاره کې تاسې ته پیښیږي؛ د هغه په مقابل کې له صبر او تحمّل څخه کار واخلئ.

فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ۝٨ فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ ۝٩

پس کله چې پو کړه شي په صور (شپېلۍ) کې. نو هغه (وخت د) پو کي په دغه ورځ کې ورځ سخته ده.

**تفسیر:** یعنې د هغې ورځې په واقعاتو او پېښو کې د صور نفخ او د شپېلۍ پو کل ګواکې یو مستقله ورځ او ځانته پېښه ده، چې له سره تر پایه پورې به له مشکلاتو څخه ډکه وي.

عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ۝١٠

پر (منکرانو) کافرانو باندې نه به وي اسانه.

**تفسیر:** یعنې پر منکرانو کافرانو باندې به هیڅ ډول اساني نه وي، بلکه د هغې ورځې سختي به لحظه په لحظه پر هغوی باندې زیاتیږي، پرته له مؤمنانو څخه چې که دوی سختي هم ووینې؛ خو د څه مدّت له مخې به وي، او وروسته له هغه به بیا په دې باندې ډېره آساني شي.

ذَرْنِي وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِيدًا ۝١١

پرېږده ما او هغه څوک چې پیدا کړی مې دی یواځې (بې له ماله او بې له مددګاره اولاده).

**تفسیر:** هر سړی د مور له ګېډې څخه یواځې او جره راځي، مال، اولاد، فوج، لښکر، سامان او نور شیان له ځان سره نشي راوړی، یا به له وحید څخه مراد خاص «ولید بن مغیره» وي، چې د هغه په باره کې دا آیات نازل شوي دي، ځکه چې ولید د خپل پلار یو ځوی وو، او د دنیوي ثروت او لیاقت له اعتباره په عربو کې یو نومیالی سړی وو، مطلب دا دی چې د داسې منکرانو په معاملو کې چابکتیا مه کوئ !، او مه د دوی له مهلت موندلو څخه خفه کېږئ !، بلکه د هغوی ګردې خبرې ماته پرېږدئ !، زه به ټول پخپل هیداد او سزا ورسوم، نو نه ښایي چې تاسې خفه او پرېشان شئ.

وَجَعَلْتُ لَهُ مَالًا مَّمْدُودًا ۝١٢ وَبَنِينَ شُهُودًا ۝١٣

او بیا مې وګرځاوه، ور مې کړ ده ته مال ډېر زیات (له هر قسمه چې تل زیاتېده). او ځامن حاضر (کېناستونکي له ده سره په هره مرکه مجلس کې).

**تفسیر:** یعنې ولید ځوی د مغیره د ډېر مال او اولاد او د ډېرو شتو خاوند وو، لس واړه ځامن یې تل د هغه په مخکې وو، په جرګو او مرکو کې به یې د خپل پلار عزّت او وقار ډېر زیاتوو، او نور به ترې ویرېدل، د سوداګرۍ په چارو او د.نورو کارونو لپاره به د هغه په مخ کې ډېر سړي وو، او هیڅ ضرورت نه پېښېده چې ځامن یې د پلاره له مخې څخه غائب شي.

وَّمَهَّدْتُّ لَهٗ تَمْهِيْدًا ﴿١٤﴾

او تیاري مې ورکړه، پراخي مې ورکړه ده لره تیاري (په عیش، عمر، مال، اولاد، ریاست سره).

**تفسیر:** یعنې ولید ځوی د مغیره په دنیا کې ډېر د عزت خاوند وو، او خپل ځان ته یې د ریاست او حکم ډېر ښه مسند تیار کړی وو، لکه چې ګرد قریش به هر مشکل کار کې هغه ته ورتلل، او دی به یې د خپلو ځانونو حاکم او مشر ګاڼه.

ثُمَّ يَطْمَعُ اَنْ اَزِيْدَ ﴿١٥﴾

بیا طمع کوي امید لري دی چې لا به ښه زیات کړم (ده لره دغه ټول شیونه).

**تفسیر:** یعنې د ولید ځوی د مغیره له ژبې څخه سره له دغه ډېر نعمت او ثروت د شکر توری به هیڅکله نه وتو، او که رسول أکرم صلی الله علیه وسلم به د هغه په مخ کې کله د جنّت د نعمتونو ذکر فرمایه؛ نو ده به ویل: «که دا سړی په خپل بیان کې رښتین وي؛ نو زه کامل یقین لرم چې د هغه ځای نعمتونه هم ماته رارسیږي»، نو د هغه په نسبت فرمایي چې سره له دومره ناشکرۍ او حق نه پېژندلو داسې هیله هم لري چې الله تعالی هغه ته د دنیا او آخرت نعمتونه لا زیاتوي.

دغه خو بې له ایمانه او شکرانه سره کېدونکې نه دي، لکه پخپله الله أجلّ شأنُه وأعظم برهانُه داسې فرمایي:

كَلَّا ؕ اِنَّهٗ كَانَ لِاٰيٰتِنَا عَنِيْدًا ﴿١٦﴾

نه کوم داسې (چې مال او سړی او نعمتونه یې ډېر کړم)، بېشکه هغه وو آیتونو ځمونږ لره عناد کونکی مخالف.

**تفسیر:** یعنې کله چې د هغه حقیقي منعم له آیتونو څخه ولید ځوی د مغیره مخالف دی؛ نو دی هیڅ حق نه لري چې داسې توقّع او هیله ولري، او هسې خیالي پلاوونه پاخه کړي، وایي چې د دې آیتونو له نازل کېدلو څخه وروسته پرله پسې د ده په مال او اسباب کې نقصان پیښېده، تر څو چې ملنګ او فقیر شو، او په ډېره خوارۍ او ذلّت سره مړ شو.

سَاُرْهِقُهٗ صَعُوْدًا ﴿١٧﴾

ژر ده چې مکلّف به یې کړم په مشقّت عذاب سخت سره (یا) وبه یې خېژوم پر لوړ غره د اور باندې.

**تفسیر:** یعنې اوس هغه «ولید» ځوی د «مغیره» ته ډېر په لوړه باندې ختل پاتې دي، او په خورا سختو مصائبو کې یې اخته کېدل په مخ کې دي، او په ځینو روایتونو کې راغلي دي چې «صعود» په دوزخ کې د یوه غره نوم دی، چې په هغه باندې کافران تل خېژول کیږي، او بیا د هغه له څوکې څخه راښکته رغړول کیږي، چې دا هم بالذات یو قسم عذاب دی.

**تنبیه:** «ولید» یو ځلې د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم په حضور مشرّف شو، دوی «ولید» ته د قرآنکریم څو آیتونه واورول، چې «ولید» د هغو له اورېدلو څخه لږ څه متأثّر شو، مګر ابو جهل یې وغولاوه، په قریشو کې یو شورماشور ونښت، چې که «ولید» مسلمان شي؛ نو کفارو ته به سخته خرابي پیښیږي، نو ځکه ګرد سره راټول شول، او د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم په نسبت راز راز خبرې وشوې، ځینو ویل چې: شاعر دی، او ځینو کاهن او نور ویل،

«ولید» وویل چې: «زه پخپله په شعر او شاعرئ کې پوه او ماهر یم، او د کاهنانو خبرې مې هم ډېر اورېدلې دي، خو دا قرآن نه شعر دی، نه سحر، او نه کهانت»، خلقو وویل: «آخر ستا فکر د هغه په نسبت څه دی؟»، ویې ویل چې: «ماته وار راکړئ چې زه څُرت ووهم»، په پای کې یې وچولی تریو او خوله یې ورانه کړه، او ویې ویل چې: «هیڅ شی نه دی، هغه کوډې دي چې له بابلیانو څخني نقل شوي دي»، حال دا دی چې ده پخوا له دې نه د قرآن د اورېدلو په وخت ویلي وو چې: دا نه کوډې دي، او نه د لېونیانو د خبرو په شان دي، بلکه د الله تعالی کلام دی، مګر یواځې د نورو خپلوانو د خوښولو لپاره یې وروسته له خپله ځانه هسې یوه خبره جوړه کړه، لکه چې وروسته د همدې په لوري اشاره شوې ده.

إِنَّهُۥ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿١٨﴾ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿١٩﴾ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿٢٠﴾

بېشکه هغه فکر وکړ (چې څرنګه طعن وکړم په قرآن) او اندازه یې وکړه په زړه خپل کې. ووژلی شو (ملعون کړ شو) څرنګه یې اندازه وکړه. بیا دې ووژلی شي (ملعون دې کړ شي) څرنګه یې اندازه وکړه (په طعن د قرآن او محمّد کې).

**تفسیر:** یعنې دې بدبخت «ولید» پخپل زړه کې خبره جوړه او داسې یې غوره کړه چې قرآن کوډې دي، الله تعالی دې دی غارت کړي او ملعون یې وګرځوي، او ودې وژني، دا یې څومره چټې او مهمل تجویز وکړ، بیا دې یې الله تعالی غارت کړي، او ملعون یې وګرځوي، او ودې وژني، چې ده د خپل قوم د جذباتو لحاظ داسې وکړ چې سم د هغوی له خوښې سره یې یوه هسې خبره ویله چې ګرد ترې خوښ شول.

ثُمَّ نَظَرَ ﴿٢١﴾ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿٢٢﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ وَٱسْتَكْبَرَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ﴿٢٤﴾ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا قَوْلُ ٱلْبَشَرِ ﴿٢٥﴾

بیا یې وکتل. بیا یې مخ تریو کړ او وچولی (تندی) یې غوټه کړ (له کراهیته). بیا یې شا واړوله (له محمده) او غاړه یې وغړوله (له اسلامیته). نو ویې ویل: نه دی دا (قرآن) مګر خو سحر دی چې نقل کاوه شي (له نورو ساحرانو نه). نه دی دا (قرآن) مګر خو خبره د بشر بني آدم ده.

**تفسیر:** یعنې «ولید» د کفّارو ټولنې ته وکتل، او خوله یې ورانه کړه، بیا یې په وینا شروع وکړه، تر څو لیدونکي وپوهېږي چې دی د قرآن په نسبت سخت کراهیت او انقباض لري، بیا یې هسې شا واړوله لکه چې د یوه منفور شي په نسبت وینا کوي، او حال دا دی چې پخوا یې د ده د حقّانیت په نسبت اقرار کړی وو، اوس دی د خپلوانو د خوښئ لامله له هغې وینا څخه واوښت، او په ډېر غرور او تکبّر سره یې وویل چې: «بس بل شی نه دی، دا هغه سحر او جادو دی چې له پخوانیو نقل شوی راځي، او په یقین سره دا د سړي خبره ده چې د جادو په ډول لاره له ځوی، مېره له ښځې، دوست له دوسته جلا کوي».

نو اوس الله أعظم شأنُه وأکرم برهانُه د ده د دغې وینا داسې تردید فرمایي:

سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ﴿٢٦﴾

(نو فرمایي الله) ژر به داخل کړم دی سقر (اور د دوزخ) ته.

**تفسیر:** یعنې ژر به هغه په اور کې واچوم، او د ده د عناد او تکبّر خوندونه به هغه ته وروڅکوم.

وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا سَقَرُ ﴿٢٧﴾ لَا تُبۡقِي وَلَا تَذَرُ ﴿٢٨﴾

او څه شي پوره کړی یې چې څه دی اور د سقر؟. نه پاتې کیږي (ترې هیڅ شی د غوښو بې له سوځولو) او نه پرېږدي (هډوکي بې له سوځولو نه).

تفسیر: یعنې د دوزخیانو هیڅ یو شی به داسې نه پاتې کیږي چې ونه سوځي، بیا له سوځېدلو څخه وروسته به په همغه خپل حال باندې هم نه پاتې کیږي، بلکه دویم ځلي به بیا پخپل هغه اصلي حالت باندې بېرته اوړي، او بیا سوځي، او دا سلسله به تل جاري پاتې کیږي.

لَوَّاحَةٌ لِّلۡبَشَرِ ﴿٢٩﴾ عَلَيۡهَا تِسۡعَةَ عَشَرَ ﴿٣٠﴾

سوځوونکې تورونکی دی (دغه اور بشره د کافرو) سرېو لره. په هغه (اور د سقر) باندې موکّلې دي نولس پرښتې.

تفسیر: یعنې د بشرې پوستکی او نور هغه شیان چې د انسان پر بدن په نظر راځي؛ ټول به وریژیږي او تک تور به اوړي، او د دوزخي حیثیت به بیخي خرابوي، شاه صاحب لیکي: لکه چې اوسپنه په اور کې سره شي، او تکه سره بربښي، د کافرانو بنـي آدمانو د ساقونو او د پنډۍ پوستکي او پردې به همغسې رابربښي، ځینې د ﴿لَوَّاحَةٌ لِّلۡبَشَرِ﴾ ترجمه داسې کوي: ظاهر کېدونکی خلقو لره، یا په نظر راتلونکی پر بدن باندې، ﴿عَلَيۡهَا تِسۡعَةَ عَشَرَ﴾ «پر هغه اور د سقر باندې موکّلې دي نولس پرښتې»، یعنې د دوزخ د انتظام لپاره هغه پرښتې لښکرې چې ټاکلې (مقرر) شوي دي؛ د هغوی مشرتوب او لار ښوونې ته نولس مشران مقرّر شوي دي.

وَمَا جَعَلۡنَآ أَصۡحَٰبَ ٱلنَّارِ إِلَّا مَلَٰٓئِكَةٗۙ

او نه دي ګرځولي مونږ خازنانې موکّلانې د دوزخ مګر پرښتې (ډېرې قوّتناکې).

تفسیر: د نولسو د شمېر له اورېدلو څخه کافرانو خندل، او ملنډې یې پرې وهلې، او ویل به یې چې: ځمونږ شمېر له زرګونو څخه زیات دی، نولس پرښتې پر مونږ باندې څه کولی شي؟ که هغوی ډېر زور ولري؛ نو هرومرو ځمونږ د لسو تنو له مقابلې ځنې یوه پرښته نشي وتلی، یوه پهلوان د دوی له منځه وویل: «چې زه یواځې د دې نولسو پرښتو له منځه اوولسو تنو لره بس یم، د دوو نورو ساتنه ستاسې په غاړه ده»، نو په دې مناسبت دا آیت رانازل شو، یعنې دوی خو په شمېر نولس دي، ولې پرښتې دي، بنیادمان نه دي، او د هرې یوې پرښتې قوّت دومره زیات دی چې د لوط علیه السلام ټبر او کلی یې په یوه لاس لکه چې ډوډۍ په تبۍ باندې پر بل مخ اړوي؛ واړول.

وَمَا جَعَلۡنَا عِدَّتَهُمۡ إِلَّا فِتۡنَةٗ لِّلَّذِينَ كَفَرُواْ

او نه دي ګرځولی مونږ (دا لړ) شمېر د دوی مګر فتنه ازموینه لپاره د هغو کسانو چې کافران شوي دي (چې استهزاء او ټوکې پرې کوي، چې دا څه عدد دی چې مقرر شوی دی؟).

تفسیر: یعنې د کافرانو د عذابولو لپاره د نولسو پرښتو شمېر پر یوه خاص حکمت باندې مبتني دی، او د دې شمېر له بیانولو څخه د منکرانو ازموینه مقصد ده، چې آیا د دې له اورېدلو څخه کوم یو ویریږي؟ او کوم یو پرې خاندي او ملنډې پرې وهي.

او بل موذکر د نولسو پرښتو وکړ، لپاره د دې:

لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِيْمَانًا وَّلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۙ

تر څو چې يقين وکړي هغه کسان چې دوی ته ورکړی شوی دی کتاب (چې يهود او نصاری دي، ځکه چې د دوی په کتابونو کې د خازنانو د اور همدغه عدد وو)، او (بل لپاره د دې چې) زيات کړي هغه کسانو لره چې ايمان يې راوړی دی په محمد له اهل کتابو نه له جهته د ايمان، ايمان يې زيات کړي (او لپاره د دې) چې ونه کړي شک هغه کسان چې دوی ته ورکړی شوی دی کتاب او مؤمنان.

**تفسير:** يعنې اهل د کتابونو ته دا شمېر لا پخوا معلوم وو، لکه چې د «ترمذي» په يوه روايت کې راغلي دي، يا لږ تر لږه د نورو سماوي کتابونو په ذريعه به دومره پوهيدلي وي چې يوه پرښته څومره زور او قوّت لري، او حال دا دی چې نولس پرښتې هم دومره لږ شمېر نه دی، بله دا چې د تعذيب د انواعو په اعتبار ښايي چې مختلفې پرښتې پر دوزخ باندې مأمورې وي، او دا کار يواځې د يوې پرښتې له لاسه پوره نه دی، په هر حال له دې بيان څخه د اهل کتابو په زړونو کې د قرآن د حقيت يقين پيدا کيږي، او د مؤمنانو په زړونو کې له دې ځنې د ايمان قوّت لا زياتيږي، او د دې دواړو ډلو په زړونو کې د پاک قرآن په بيان کې هيڅ يو شک اوترديد او اشتباه نه پاتې کيږي، او نه مؤمنان د کافرانو په دې مسخرو او ملنډو باندې تېروځي او غوليږي، او بل مو ذکر د نولسو پرښتو وکړ لپاره د دې:

وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ وَّالْكٰفِرُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ؕ

او چې ووايي هغه کسان چې په زړونو د هغوی کې مرض ناروغي (د نفاق) ده، او (ووايي) کافران: څه شی اراده کړې ده الله پر دې شمېر (د ملائکو) سره له جهته د مثاله.

**تفسير:** له ﴿الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ﴾ څخه منافقان يا ضعيف الايمان سړي مراد دي، او له «کافرون» څخه ښکاره منکران مطلب دي، يعنې د نولسو له بيان ځنې مقصد څه وو؟ داسې ناموزونه خبره څوک منلی شي؟ (العياذ بالله).

كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

همداسې (په شان د ګمراه کولو د منکرانو) ګمراه کوي الله هر هغه څوک چې اراده وفرمايي د ضلالت يې، او سمه لاره ښيي هر هغه چاته چې اراده وفرمايي (د هدايت يې).

**تفسير:** يعنې له يوه څيز ځنې يو بد استعداده سړی ګمراه کيږي، او يو سليم الطبع انسان لاره مومي، څوک چې غواړي کومه خبره ونه مني؛ نو خامخا ښه خبره په بدې باندې اړوي، او له هغې څخه مسخرې او ملنډې جوړوي، او د هر چا په زړه کې چې د الله تعالی وېره او ايمان وي؛ نو د هغه له اورېدلو څخه د ده ايمان ټينګيږي، او يقين يې ترقي کوي.

وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ اِلَّا هُوَ ؕ

او نه پوهيږي په لښکر د رب ستا مګر همدغه.

**تفسير:** يعنې د الله تعالی د بې شمېرو لښکرو شمېر يواځې هغه ته معلوم دی، دا نولس تنه پرښتې خو يواځې د دوزخ د کارکوونکيو پرښتو مشرانې دي.

وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ ۝٣١

او نه دی دا (سقر، جهنّم) مګر خو ذکر پند دی خلقو ته (چې پرې پند ونیسي).

تفسیر: یعنې د دوزخ ذکر یوائې د عبرت پند او نصیحت لپاره دی، تر څو د هغه د احوالو له اورېدلو څخه خلق د الله تعالی له غضبه وویرېږي، او د هغه له نافرمانی څخه مخ واړوي.

كَلَّا وَالْقَمَرِ ۝٣٢ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ۝٣٣ وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ ۝٣٤ إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ۝٣٥

نه ده داسې (چې څوك به انکار وکړي له سقره) او قسم دی په سپوږمی باندې. او په شپې باندې کله چې شا واړوي. او په ګهیځ (سحر) باندې کله چې روڼ شي؛. بېشکه دا (اور د سقر) خامخا (یو له بلاګانو) لویو څخه دی.

تفسیر: یعنې هغه خورا لوی وېروونکي او ډېر عظیم الشأن شیان چې په قیامت کې ظاهر کېدونکې دي؛ دوزخ له هغو لویو شیانو څخې یو شی دی.

نَذِيرًا لِلْبَشَرِ ۝٣٦ لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ۝٣٧

وېروونکې دی (سقر) بشر بني آدمانو لره. هغه چا لره چې غواړي له تاسې څخې چې وړاندې شي (نېکی، جنّت ته په ایمان سره) یا وروستی شي (شرور ته په کفر سره).

تفسیر: که وړاندې لاړ شي؛ د نېکی یا د جنّت په لوري درومي، که بېرته پاتې شي؛ په بدئ اخته کیږي، یا په دوزخ کې لوېږي.

كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ ۝٣٨ إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ ۝٣٩ فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ ۝٤٠ عَنِ الْمُجْرِمِينَ ۝٤١

هر نفس په سبب د هغه چې کړې یې وي؛ ګرو، بندي به وي (په سقر کې). مګر خو خاوندان د ښي لاس. وي به په جنتونو کې چې پوښتنې به سره کوي یو له بل. له حال د مجرمانو (ګنهګارانو).

تفسیر: یعنې هغه خلق چې د میثاق په ورځ کې د آدم علیه السلام د شا له ښي لوري څخه وتلي وي، او په دنیا کې یې هم ښې چارې کړې وي، او په سمه لاره تللي وي، او په موقف کې د عرش په ښي خوا چېرې چې جنّت وي؛ ودرېږي، او په همغه طرف رهي کیږي، او د هغوی عملنامې هم په ښي لاس کې ورکړی شوي وي؛ نو دا خلق نه یوائې له قیده او رنځ څخه خوشې دي، بلکه د جنّت په باغونو کې خوښ، خوشاله، او په خپل واك سره ګرځي، او په خورا بېفکرئ او فارغ البالی سره له خپلو نورو ملګرو یا پرښتو څخه د ګنهګارانو احوال پوښتي، چې هغوی چېرې دي؟ چې دلته نه ښکاري؟.

مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ۝٤٢

(نو وبه وایي مؤمنان منکرانو ته داسې چې:) څه شي داخل کړي یئ تاسې (ای منکرانو) په دوزخ کې.

تفسیر: یعنې کله چې واوري چې ګنهګاران په دوزخ کې اچولی شوي دي؛ نو دوی د دې ګنهګارانو په لوري متوجّه کیږي، او داسې پوښتنې ترې کوي چې تاسې سره له پوهنې او عقل څرنګه د دوزخ په اور کې لویدلي یئ؟.

قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ ﴿۴۳﴾ وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ ﴿۴۴﴾ وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ ﴿۴۵﴾
وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ ﴿۴۶﴾ حَتَّىٰ أَتَانَا الْيَقِينُ ﴿۴۷﴾

وبه وايي (مجرمان په ځواب د مؤمنانو کې چې) نه وو مونږ (په دنيا کې) له لمونځ کوونکيو ځخه. او نه وو مونږ چې طعام خواړه مو ورکړي وی مسکينانو ته. او وو مونږ چې ننوتلو شغل مو کاوه په (باطلو) خبرو سره له ډېرو خبرو کوونکيو. او وو به مونږ (په دنيا کې) چې دروغ به مو ويل په ورځ د جزاء (قيامت) باندې. تر هغه پورې چې راغله مونږ ته (هغه) يقيني خبره (مرګ).

**تفسير:** يعنې نه يې د الله تعالى حق وپېژنده، او نه يې د بندګانو خبر واخيست، هو ! د نورو خلقو په شان به يې د حق په خلاف بحثونه کول، او په بدو صحبتونو کې کېناسته، تر ځو د شکوکو او شبهاتو په دلدل کې کېواته، او له ګردو ځخه لويه خبره دا ده چې د هغوی باور نه وو چې د انصاف ورځ به هم راتلونکې وي، او تل به هغو رښتيا خبرې دروغ ګڼلې، تر ځو چې د مرګي په کنده کې ولوېده، او پخپلو سترګو يې وليده، او په هغو ګردو خبرو چې دروغ يې بللې پوره، باور وشو.

فَمَا تَنْفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِينَ ﴿۴۸﴾

(نو فرمايي الله) پس نفع ګټه به ونه رسوي دوی ته شفاعت د سپارښت کوونکيو.

**تفسير:** د کافرانو په حق کې به هيڅوک سپارښت ونه کړي، او که يې وکړي؛ نه به منلی کيږي.

فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِينَ ﴿۴۹﴾

پس څه شوي دي په دوی باندې چې له تذکره پنده (قرآنه) مخ ګرځوونکي دي.

**تفسير:** يعنې سره له دې چې دا مصيبتونه د دوی په مخ کې دي، او ښه پندونه هم اوري، خو هيڅ نه متأثر کيږي، بلکه د هغوی له اورېدلو ځنې هم غاړه غړوي.

كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُسْتَنْفِرَةٌ ﴿۵۰﴾ فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ ﴿۵۱﴾

ګواکې دوی (صحرايي خره) ګوره خر دي تښتېدونکي. چې تښتي له ځمري (يا له غال مغال) ځخه.

**تفسير:** يعنې د حق او حقيقت د شورماشور له اورېدلو ځخه، او د الله تعالى د ځمريانو له غړمبېدلو ځخه لکه وحشي خره لرې تښتي.

بَلْ يُرِيدُ كُلُّ امْرِئٍ مِنْهُمْ أَنْ يُؤْتَىٰ صُحُفًا مُنَشَّرَةً ﴿۵۲﴾

بلکه غواړي هر يو سړی له دوی نه دا چې ورکړی شي ده ته پاڼې خورې شوې (په متابعت د محمد کې).

**تفسير:** يعنې نه غواړي چې د پيغمبرانو خبرې واوري، بلکه له دوی ځنې د هر سړي غوښتنه دا ده چې پخپله په ده باندې د الله تعالى صحيفې رانازلې شي، او دی هم پيغمبر وپېژندل شي، لکه چې د الأنعام سورت په پينځلسمه رکوع (۱۲۴) آيت ځمونږ دغه تفسير کې راغلي دي: ﴿حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ﴾.

كَلَّا ۖ بَل لَّا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ ﴿٥٣﴾

داسې نه ده (ور به نه کړی شي دوی ته دا پاڼې) بلکه نه ویریږي دوی له (عذابه د) آخرت څخه.

**تفسير:** یعنې هیڅکله به داسې نه کیږي، ځکه چې نه په هغو کې دا لیاقت شته، او نه د دې خبرې د اجراء لپاره څه اړه او ضرورت دی، یعنې که چېرې دغه پاڼې هم دوی ته ورکړی شي؛ نو بیا هم دوی ایمان نه راوړي، نو پس څنګک کول د دوی له ایمانه په سبب د نه راتللو د کاغذونو سره نه دي، بلکه دوی نه ویریږي له عذابه د آخرته.

كَلَّا إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾ فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ ﴿٥٥﴾

نه ده داسې چې دوی وایي (قرآن ته چې سحر کهانت دی)، بېشکه دا (قرآن) تذکره پنده دی.
پس هر هغه څوک چې غواړي پند دې واخلي له دغه (قرآن).

**تفسير:** یعنې داسې له سره نشي کېدی چې هر یوه ته بېل بېل کتاب ورکړ شي، همدا یو کتاب پاک قرآن د پند لپاره بس او کافي دی، ﴿فَمَن شَاءَ ذَكَرَهُ﴾ «پس هر هغه څوک چې غواړي؛ پند دې واخلي له دغه قرآن څخه».

وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّا أَن يَشَاءَ اللَّهُ ۚ

او نه اخلي پند (له قرآنه) دوی مګر که اراده وفرمایي الله (د هدایت یې).

**تفسير:** یعنې د الله تعالی غوښتل او نه غوښتل اګر که د ده په حکمت باندې مبني دي، چې هیڅ یو بشر په هغه باندې احاطه نشي کولی؛ همدی د هر سړي استعداد او لیاقت په ښه ډول سره پېژني، او سم له هغه ورسره معامله کوي.

هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾

همغه (الله) دی اهل (وړ) د وېرې (چې ترې وویریږو)، او اهل د ښښې (چې ښښنه ترې وغواړو).

**تفسير:** یعنې سړی هومره ګناه چې وکړي، خو هر کله چې د تقوی په لارې باندې لاړ شي، او له الله تعالی څخه وویریږي؛ نو دی به یې ګرد ګناهونه وښښي، او د هغه توبه به ومني، ځکه د الله تعالی نه وېره پکار ده؛ او هم دی ښښنه او مغفرت کوي.

تمّت سورة المدّثر بمنّه وتوفيقه، فله الحمدُ والمنّة.



# سُوْرَةُ الْقِيَامَةِ

«د (القيامة) سورت مكي دی، (۴۰) آيته او (۲) ركوع لري، په تلاوت كې (۷۵) او په نزول كې (۳۱) سورت دی، وروسته د (القارعة) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

لَآ أُقْسِمُ بِيَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۝١

قسم خورم زه په ورځې د قيامت باندې.

تفسير: يعنې د قيامت د ورځې امكان د عقل له مخې او متيقن الوقوع كېدل يې د داسې مخبر صادق په وينا سره ثابت شوي دي چې د هغه په صدق باندې قطعي دلائل قائم دي، زه په هغه باندې قسم خورم چې تاسې په يقين وروسته له مړينې څخه بيا ژوندي كېږئ، او ضرور به د ښو او د بدو حساب كېږي.

تنبيه: اسلامي شريعت مسلمانانو ته پرته (علاوه) له الله تعالى پر بل شي باندې قسم يادول حرام كړي دي، خو د الله تعالى شان له بندګانو څنې جلا او بېل دی، هغه لوی ذات پرته له خپل ځان څخه په بل باندې هم قسم يادوي، او عمومًا پر هغه شيانو باندې قسم يادوي چې د ده په نزد محبوب يا نافع يا وقيع او مهتم بالشأن وي، يا مقسم عليه لپاره په ډول د شاهد او حجّت ودراوه شي، دلته د قيامت په ورځ قسم خوړل د هغه د نهايت وقع او مهتم بالشأن او عظمت له حيثيته دی، او په هغه مضمون باندې يې چې قسم ياد كړی دی؛ د هغه مناسبت ښكاره دی، ځكه چې د بعث او د مجازاتو ظرف همدغه قيامت دی، والله تعالى أعلم.

وَلَآ أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ۝٢

او قسم خورم زه په نفس ملامت كوونكي (ځان خپل لره په خرابۍ باندې، اګر كه كوښښ يې كړی وي په نېكو كارونو. ځواب د قسم دا دی چې خامخا به ژوندی كړی شئ دويم وار).

تفسير: محققينو ليكلي دي چې: د سړي نفس يو شی دی، خو همغه يو نفس د دريو حالاتو په اعتبار درې نومونه لري:

(۱): كه نفس د علوي عالم په لوري مائل وي، او د الله تعالى په عبادت او اطاعت كې خوښي ورته حاصله وي، او د شريعت په پيروي كې يې اطمينان او تسلي په برخه وي؛ نو دې نفس ته «مطمئنّة» وايي، لكه چې د (۳۰ جزء د الفجر سورت په (۲۷) آيت) كې يې لولو: ﴿يٰٓأَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ * ارْجِعِيٓ إِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً﴾.

(۲): كه نفس د سفلي عالم په لوري مايل وي، او په دنيوي لذّاتو، غوښتنو او خواهشونو كې مبتلا او اخته وي، او د بدی په لوري يې رغبت او د شريعت له اطاعته مباعدت خوښوي؛ نو دی نفس ته (امارة) وايي، ځكه چې هغه سړي ته امر وركوي چې په بدو چارو كې مشغول او بوخت شي، لكه چې (د ۱۳ جزء د يوسف عليه السلام سورت په اوومه ركوع (۵۳) آيت كې) ځمونږ دغه تفسير كې راغلي دي: ﴿وَمَآ أُبَرِّئُ نَفْسِيٓ إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌۢ بِالسُّوٓءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّيٓ﴾.

(۳): دريېم نفس کله د عالم سفلي په لوري ميلان کوي، او په شهوت او غضب کې اخته کيږي، او کله د عالم علوي په لوري رُجحان غوره کوي، او له ګردو خرابو شيانو څخه لرې تښتي، او که کومه خرابي يا تېرواته ترې وشي؛ نو په هغه باندې شرميږي، او خپل ځان ملامتوي، نو دې نفس ته «لوامة» وايي.

دلته يې په نفس «لوّامې» باندې قسم ياد کړ، چې که د چا فطرت صحيح وي؛ نو دی پخپله د خپل نفس له لوري په دنيا کې په خرابۍ او تقصيراتو باندې ملامتي اړوي، او همدا شی دی چې پخپل خورا لوی او ښه او بهتر صورت سره په قيامت کې به راڅرګنديږي.

اَیَحۡسَبُ الۡاِنۡسَانُ اَلَّنۡ نَّجۡمَعَ عِظَامَہٗ ؕ﴿۳﴾

آيا ګمان کوي (کافر) انسان چې له سره به نه ټولوو مونږ (خواره واره) هډوکي د ده (لپاره د ژوندون په ورځ د قيامت)؟.

تفسير: يعنې کافر انسان داسې خيال کوي چې تر هډوکي پورې هم مات او ګوډ او خواره واره شوي دي، او د هغو وړو کي بڅر کي هم په خاورو او نورو کې ګډوډ شوي دي، نو ښه، اوس به هغه څرنګه يو ځای کيږي؟ او بيا به په څه ډول سره جوړ او پيونديږي؟ داسې خو ډېر سخت او محال ښکاري، داسې نه ده چې مونږ به جمع نه کړو خواره واره شوي هډوکي د ده.

بَلٰی قٰدِرِیۡنَ عَلٰۤی اَنۡ نُّسَوِّیَ بَنَانَہٗ ﴿۴﴾

هو ! (بلکه جمع به يې کړو) حال دا چې قادر يو مونږ په دې باندې چې برابر ټول کړو هډوکي او بندونه د ګوتو د ده.

تفسير: يعنې مونږ خو د ګوتې بندونه هم جوړولی شو، د بندونو تخصيص ښايي د دې لامله وي، چې دا د بدن له اطرافو څنې دی، او د هر څيز تکميل د هغه په اطرافو باندې کيږي، لکه چې څمونږ په محاورو کې هم په داسې مواردو کې داسې ويلې کيږي چې: څما بندونه خوږيږي، او له هغه څخه مراد ګرد بدن وي، بله دا چې په بندونو کې سره د هغو وړو کي توبه د صنعت رعايت زيات دی، او عادتًا ډېر سخت او نری کار دی، نو څکه هغه څوك چې په سخت کار باندې قادر وي؛ نو هغه په آسان کار باندې په اولی طريقه سره قادر دی، او يا مراد دا دی چې: مونږ پدې قادر يو چې د ده ګوتې د خپرې او د خنګري په څېر وګرځوو، چې بيا ترې هغسې فائدې نشي اخيستلی، چې اوس يې ترې اخلي، څکه چې هره ګوته بېله بېله ده.

بَلۡ یُرِیۡدُ الۡاِنۡسَانُ لِیَفۡجُرَ اَمَامَہٗ ۚ﴿۵﴾ یَسۡـَٔلُ اَیَّانَ یَوۡمُ الۡقِیٰمَۃِ ؕ﴿۶﴾

بلکه اراده لري (کافر) انسان چې دروغ ووايي (په هغه څيز باندې چې) مخ کې د ده دی (له قيامت او حسابه). پوښتنه کوي (کافر انسان استهزاءً چې) کله به وي (ورځ د) قيامت؟.

تفسير: يعنې هغه خلق چې له قيامت څخه انکار کوي، او دويم ځلي ژوندون محال ګڼي؛ د هغه سبب دا نه دی چې دا خبره ډېره مشکله ده، او د الله تعالی کامل قدرت او نښې ښکاره نه دي، بلکه بني آدم غواړي چې د قيامت له راتګه پخوا پخپل راتلونکي عمر کې چې پاتې دی بالکل بېباك او بې پروا شي، او په فسوقو او فجورو کې مشغول پاتې وي، نو څکه له داسې خيال څخه يې زړه تل په ډډه ګرځي، چې ترې عيش منغص نشي، او په لذّت کې يې څه خلل ونه لويږي، بلکه د استهزاء او تعنّت او د سپين سترګی له مخې پوښتنې کوي چې ښه خانه ! هغه ستاسې قيامت به کله راځي؟ که په رښتيا سره راتلونکی وي؛ نو مياشت او کال او نېټه يې په ښکاره ډول سره راوښيه !.

فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ ﴿٧﴾ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ﴿٨﴾

کله چې خړې، متحيّرې شي سترګې له هيبته. او توره شي سپوږمۍ (رڼا يې لاړه شي).

تفسير: يعنې د حيرت او وېرې لامله يې سترګې خړې پاتې شي، او لمر به هم سر ته ډېر نژدې راشي، او سپوږمۍ بې نوره شي، سپوږمۍ يې ځکه جلا ذکره کړه، چې عربو د قمري حساب لامله هغې ته په ډېر زيات اهتمام سره کتل، او د هغې له احواله به تل خبر وو.

وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ﴿٩﴾ يَقُولُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ أَيْنَ الْمَفَرُّ ﴿١٠﴾ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴿١١﴾ إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمُسْتَقَرُّ ﴿١٢﴾

او جمعه شي لمر او سپوږمۍ (له طرفه د مغربه په قيامت کې، يا جمع شي په تورواليِ کې په تلو د رڼا د دواړو سره، يعنې په بې نورۍ او تت والي کې به دواړه سره شريک او مله وي). نو وبه وايي (کافر) انسان په دغه ورځې کې: چېرته ځای د تېښتې شته؟. (نه دی مناسب طلب د تېښتې) نشته ځای د پناه. خاص رب ستا ته په دغې ورځې کې ځای د قرار د خلقو دی (نو حساب به ورسره وکړی شي، او جزاء به ورکړه شي).

تفسير: يعنې اوس خو وايي چې هغه ورځ چېرې ده؟ او په هغه وخت کې به له وېرې بد حواس کيږي، او داسې به وايي چې نن زه چېرې وتښتم؟ او په کوم ځای کې پټ شم؟ نو داسې ارشاد به کيږي: چې نن نه د تښتېدلو موقع ده، او نه د پوښتنې وخت، نن هيڅ يو طاقت هم تاسې نشي خلاصولی، اونه پناه درکولی شي، نن ګرد د خپل پروردګار په مخ کې حاضريږي، او د هغه د عدل او انصاف په مخ کې ودريږي، او هغه هره فيصله چې وغواړي؛ د هر چا په حق کې يې کوي.

يُنَبَّأُ الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ ﴿١٣﴾

خبر به کړ شي انسان په دغې ورځې (د قيامت) کې په هغو (اعمالو) چې مخ کې يې ليږلي دي (نېک وي که بد) او (په هغو اعمالو چې) وروسته يې پرې ايښي وي (نېک وي که بد).

تفسير: يعنې ګرد پخواني او وروستني اعمال ښه وي که بد وي؛ هغه ته ورښکاريږي (ښکاريږي)، او پرې پوهيږي.

بَلِ الْإِنسَانُ عَلَىٰ نَفْسِهِ بَصِيرَةٌ ﴿١٤﴾ وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُ ﴿١٥﴾

بلکه انسان په ځان خپل باندې حجّت لېدونکی شاهد دی. اګر که وړاندې کړي عذرونه خپل (قبول به نشي).

تفسير: زياترو مفسرينو د دې تعلّق له ﴿يُنَبَّؤُا الْإِنسَانُ يَوْمَئِذٍ﴾ الآية ـ سره اخيستی دی، يعنې په ورښوولو باندې هم موقوف نه دی، انسان به پخپل احوالو باندې پخپله مطلع وي، که څه د طبيعت په اقتضاء سره دوی هلته هم بهانې جوړې کړي، او راز راز حيلې وروړاندې کړي، لکه چې کافران به وايي: ﴿وَاللَّهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِينَ﴾ بلکه دلته په دنيا کې هم هغه انسان چې د هغه ضمير بالکل مسخ شوی نه وي؛ پخپل حال باندې په ښه ډول سره پوهيږي، اګر که د نورو په مخ کې حيلې او بهانې جوړې کړي، او د هغه به مخالفت کې ډېر کوښښ وکړي.

لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ ﴿۱۶﴾ اِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهٗ وَقُرْاٰنَهٗ ﴿۱۷﴾ فَاِذَا قَرَاْنٰهُ فَاتَّبِعْ قُرْاٰنَهٗ ﴿۱۸﴾ ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهٗ ﴿۱۹﴾

مه خوځوه په دې (قرآن) سره (ای محمده ! پخوا له وحي) ژبه خپله چې تعجيل به کوې په دې (قرائت سره). بېشکه پر مونږ باندې دي جمع کول يې (په سينه ستا کې) او لوستل يې (په ژبه ستا). بيا مو کله چې ولوست دا؛ نو متابعت کوه ته د لوستلو د ده (غوږ ورته نيسه). بيا بېشکه په مونږ باندې دي ښکاره بيانول د هغه (په اعتبار د فهم سره).

تفسير: کله چې به جبريل عليه السلام د الله تعالى له لوري د قرآن وحي راوړه، د جبريل عليه السلام له لوستلو سره به يو ځای ځمونږ رسول اکرم صلى الله عليه وسلم هم هغه لوسته، چې ژر يې ياد او زده يې کړي، او د جبريل عليه السلام له تللو څخه وروسته وحي يې په ښه ډول په ياد پاتې وي، مګر په دې صورت کې دوی ته ډېر تکليف پېښېده، کله به چې دوی هغه ړومبی کلمه لوستله؛ دويمه کلمه به د دوی په فهم کې په ښه ډول سره نه راتله، او د هغو په پوهېدلو کې به هم دوی ته لږ ډېر دقّت پېښېده، نو ځکه الله تعالى وفرمايل چې: په دې وخت کې ستا د ژبې د خوځولو او لوستلو هيڅ ضرورت نشته، تاسې بالکل د زړه له کومې د وحي اورېدلو ته متوجه شئ !، او داسې انديښنه مه کوئ چې دا به مې نه يادېږي، او بيا به يې څرنګه ولولم؟ او خلقو ته به يې په څه ډول وپوهوم؟ د هغو ګردو تورو ستاسو په ټټر (سينه) کې حرف په حرف ټولول او ستاسې له ژبې څخه د باندې راايستل، او په خلقو يې لولول ځما کار دی، کله چې پرښته پاک قرآن ځما له لوري تاسې ته ولولي؛ نو تاسې چپ اوسئ !، پوه او ښه يې واورئ !، د هغه اورېدل، د هغه يادول، او د هغه علومو او معارفو وروته درخلاصول، او ستاسې له ژبې څخه نورو ته د هغه رسول، او روښانول؛ دا ګرد ځمونږ له کارونو څنې دي، وروسته له دې څخه رسول الله صلى الله عليه وسلم له جبريل عليه السلام سره يو ځای لوستل پرېښودل.

كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ ﴿۲۰﴾ وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ ﴿۲۱﴾

نه دي داسې (لکه چې انکار کوي کفّار له بعثه)، بلکه خوښوئ تاسې ځغلېدونکې (ژر فاني کېدونکې دنيا). او پرېږدئ تاسې آخرت (چې باقي او وروسته راتلونکی دی، او د هغه لپاره هيڅ عمل نه کوئ).

تفسير: يعنې ستاسې دا د قيامت او د نورو حقائقو انکار کول هيڅ يو په کوم يوه صحيح دليل باندې مبني نه دي، بلکه د دې سبب د دنيا انهماک دی، کله چې دنيا نقدي او ژر رسېدونکی شی دی؛ نو ځکه يې تاسې غواړئ، آخرت تاسې پور ګڼئ او پرېږدئ يې، او وايئ چې: د هغه رارسېدل لرې دي.

وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿۲۲﴾ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴿۲۳﴾

ځينې مخونه (يعنې د مؤمنانو به) په دغې ورځې (د قيامت) کې ښايسته تازه روښانه وي. خاص ذات د رب خپل ته به کتونکې وي.

تفسير: دا د آخرت بيان دی، يعنې د مؤمنانو څېرې به په دې ورځې کې ډېرې روښانه ځلېدونکې تر او تازه او ډېرې خوښې او بشاشې وي، او د دوی سترګې به د حقيقي محبوب په لقاء او کتلو سره رڼې وي، له قرآنکريم او متواترو احاديثو څنې په يقيني ډول سره معلوم شوي دي چې په آخرت کې به د الله تعالى ليدنه وي، خو ګمراهان له دې څخه منکر دي، ځکه چې دا نعمت د هغوی په برخه کې نه دی.

وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ بَاسِرَةٌ ﴿٢٤﴾ تَظُنُّ أَنْ يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿٢٥﴾ كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴿٢٦﴾

او ځيني مخونه (يعني د كفّارو) په دغې ورځې (د قيامت) كې به تريو بدخېره وي. يقين به كوې چې كاوه شي، واقع كيږي په دغو (مخونو) باندې دوى ته بلا لويه چې ماتوونكې وي هډوكي د شا لره. نه ده داسې (چې دنيا خوښوي پر آخرت) كله چې ورسيږي (سا) هډوكي د ستوني ته.

**تفسير:** يعني باور لري چې هغه ناكاره معامله كېدونكې ده، او هغه عذاب د ګاللو دى چې بالكل به ملا ماتوونكى وي.

﴿كَلَّآ إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ﴾ «نه ده داسې چې دنيا خوښوي پر آخرت، كله چې ورسيږي ساه هډوكي د ستوني ته»، يعنې آخرت لرې مه ګڼئ، ځكه چې موت د دې سفر ړومبنى منزل دى، چې هغه ډېر نژدې له همدې ځايه د نورو منزلونو په تللو باندې شروع كيږي، تر څو چې وروستني منزل ته ورسيږي، ګواكې د هر سړي مرګ هغه لره د لويې ورځې (قيامت) يوه وړوكې نمونه ده، هر كله چې د مريض روح ګرد سره غونډ شي، او چنغړك هډوكي د تټر او ورمېږ ته ورسيږي، او سا يې په مرۍ كې ونښلي؛ نو وپوهېږه چې د آخرت منزل يې شروع شو.

وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ ﴿٢٧﴾ وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴿٢٨﴾

او وبه ويلى شي (يعنې وبه وايي هغه څوك چې چاپېر له مريضه دى) څوك دى دم كوونكى (په هغه رنځور باندې چې جوړ شي، او روح يې بېرته ور وګرځي)؟. او يقين وكړي (هغه مريض) چې بېشكه په ده (باندې راغلى) دى وخت د فراق جدايي (له دنيا او خپلوانو).

**تفسير:** د داسې مأيوسۍ په وخت كې د طبيبانو او ډاكټرانو له لاسه هيڅ شى نه وي پوره، كله چې خلق له ظاهري علاج او تدبير څخې عاجز شي؛ نو د دم او دعاء په فكر كې لويږي، او يو له بل سره وايي: «خانه ! كوم داسې ښه سړى راولئ، چې په دې رنځور څه دم او دعاء وكړي.

﴿وَظَنَّ أَنَّهُ الْفِرَاقُ﴾ «او يقين وكړي هغه محتضر چې بېشكه په ده باندې راغلى دى وخت د فراق جدايي له دنيا او خپلوانو»، يعنې مړ كېدونكى به وپوهيږي چې بېشكه په دى اوس له ګردو عزيزانو او اقاربو او محبوبو او مألوفو شيانو څخې بېلېدونكى دى، يا يې دا مطلب چې سا يې له بدنه تلونكې ده.

وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ ﴿٢٩﴾

او تاويږي يوه پُنډۍ (د ده) له بلې پُنډۍ (د ده) سره (له هيبته د مرګ).

**تفسير:** يعنې په ځينو اوقاتو كې د موت د سكراتو لامله يوه پُنډۍ له بلې پُنډۍ سره لګيږي، او هم د بدن د لاندنۍ برخې څخې د روح د تعلق له منقطع كېدلو څخه وروسته د پنډيو خوځول او يوه له بلې څخې بېلول به د ده په واك كې نه پاتې كيږي، نو ځكه يوه پُنډى له بلې پُنډۍ څخه بېواكه لويږي، ځيني اسلاف وايي چې: د عربو په محاورو كې «ساق» كنايه ده له سخت مصيبت څخه، نو په دې تقدير به د دې آيت ترجمه داسې كيږي: «يوه سختي به له بلې سختۍ سره يو ځاى كيږي»، ځكه چې مړ كېدونكي ته په دې وخت كې دوه سختې ورووړاندې كيږي، يوه دا چې له دنيا څخې داسې درومي چې مال او اسباب، اهل او عيال، كور او كهول، جاه او حشم ګرد څخې پاتې كيږي، غليمان پرې خوښيږي، او پيغورونه وركوي، او خپلوان يې خفه كيږي، او په رنځ او خفګان كې لويږي، بله يې له دې څخې ډېره لويه او وېروونكې ده، چې هغه د قبر او آخرت هسې پېښې او احوال دي چې د هغه كيفيت په بيان نشي راتلى، يعنې سختۍ د دنيا د آخرت له سختيو سره يو ځاى كيږي.

إِلَىٰ رَبِّكَ يَوْمَئِذٍ الْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾

په لوري د رب ستا په دغې ورځې کې ورتله دي (د ټولو مخلوقاتو لپاره د مجازاتو).

تفسير: يعنې د آخرت د سفر ابتداء له دې ځای څخنې ده، ګواکې اوس د بنده راښکوول د خپل پروردګار په لوري شروع شو.

فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلَّىٰ ﴿٣١﴾ وَلَٰكِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿٣٢﴾ ثُمَّ ذَهَبَ إِلَىٰ أَهْلِهِ يَتَمَطَّىٰ ﴿٣٣﴾

بيا يې يقين ونه کړ (په مؤمن به باندې)، او نه يې لمونځ وکړ. مګر دروغجن يې وشمېره (قرآن لره)، او مخ يې وګرځاوه (له ايمانه). بيا لاړ اهل خپل ته (له مجلس نه) په تکبّر سره.

تفسير: يعنې د رښتين ګڼلو او باور لرلو په ځای پيغمبران دروغجن شمېري، او د لمانځه کولو او د الله تعالی په لوري د متوجّه کېدلو په ځای تل له هغه ځنې غاړه غړوي، او په دې باندې يوازې اکتفاء نه کوي، بلکه په خپل تکبّر او غرور د خپلو متعلّقينو او خپلوانو په لوري ځي، او داسې راښکاروي چې لکه کوم ښه لوی کار او ډېره مېړانه او د پوهنې کار يې کړی دی.

أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴿٣٤﴾ ثُمَّ أَوْلَىٰ لَكَ فَأَوْلَىٰ ﴿٣٥﴾

وړ لايقه ده تاته (ای کافر انسانه هغه شی چې بد يې بولې سختي د مرګ). پس وړ لايقه ده (هغه شی چې بد يې بولې چې سختي د قبر ده). بيا وړ لايقه ده تا لره (هغه شی چې بد يې بولې چې سختي د ورځې د قيامت ده)، پس وړ لايقه ده (تا لره هغه شی چې بد يې بولې چې همېشه عذابېدل ستا دي په دوزخ کې).

تفسير: يعنې ای بدبخته ! اوس ستا د هلاکت، افسوس او کمبختی وار دی، يو ځلې نه بلکه څو څو ځلې اوس پاتې خرابي پر خرابۍ او تباهي پر تباهی ده، پرته له تانه به بل هيڅوک د الله تعالی د نوې نوې سزا وړ او مستحق نه وي.

أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَن يُتْرَكَ سُدًى ﴿٣٦﴾

آيا ګمان کوي (کافر) انسان چې پرې به ښود شي دی چټي (بېکاره) بې قيده مهمله بېکاره.

تفسير: يعنې آيا بني آدم داسې ګڼي چې دی به همداسې چټي بېکاره او مهمل پرې ښود شي؟ او د امر او نهي هيڅ يو قيد به په ده باندې نه وي؟ يا له مرېنې څخه وروسته به بيا نه ژوندی کيږي؟ او له ده څخه به د نېکيو او د بديو ګرد شمېر نه اخيست کيږي؟ او هيڅ حساب او کتاب به ورسره نه کيږي.

أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّن مَّنِيٍّ يُمْنَىٰ ﴿٣٧﴾ ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوَّىٰ ﴿٣٨﴾ فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ الذَّكَرَ وَالْأُنثَىٰ ﴿٣٩﴾ أَلَيْسَ ذَٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلَىٰ أَن يُحْيِيَ الْمَوْتَىٰ ﴿٤٠﴾

آيا نه وو دغه (انسان اول) يو څاڅکی له مني څخه چې تويوه شي (اچوه شي پر رحمونو د ښځو کې)؟. بيا وو دی يوه ټوټه د وينو؛ نو پيدا کړ الله (اندامونه يې) پس برابر کړ (صورت يې او روح يې پکې وپو کول). نو پيدا يې کړ لـه هغه (اوبو د مني) څخه جـوړه (دوه صنفه) نارينه او ښځه. آيا نه دی دغه (ذات) قدرت لرونکی کوونکی د دغو افعالو، قادر په دې باندې چې ژوندي کړي مړي؟ (بلکه ښه قادر دی).

**تفسير:** يعنې انسان له نطفې څنې د غوټه شويو وينو په شکل ګرځي، بيا الله تعالی د دې د پيدايښت ګرد مراتب پوره کوي، او انسان ترې جوړوي، او ټول ظاهري اعضاء او باطني قوتونه يې برابروي، او د يوې بېځانې نطفې څنې يو عاقل انسان جوړوي، او هم له همدې نطفې څنې دوه ډوله (قسمه) بني آدم پيدا کوي، چې د دوی د هر يو ظاهري او باطني خصوصيات سره بېل وي، آيا هغه مطلق قادر چې له اوله يې ګرد خلق په داسې يو حکمت او قدرت سره پيدا کړي وي؛ بيا په دې باندې قادر نه دی چې دوی بيا راژوندي کړي؟ (سبحانک اللهمّ فَبلی !»، پاک دی ستا ذات ای الها !، ولې به يې نه پيدا کوې؟ ته بېشکه قادر يې.

تمّت سورة القيامة بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الدَّهۡرِ

«د (الدّهر) سورت مکّي دی، (۳۱) آیته (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۷۶) او په نزول کې (۹۸) سورت دی، وروسته د (الرّحمان) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

هَلۡ اَتٰى عَلَى الۡاِنۡسَانِ حِيۡنٌ مِّنَ الدَّهۡرِ لَمۡ يَكُنۡ شَيۡـًٔا مَّذۡكُوۡرًا ①

آیا راغلی دی (يعنې په تحقيق سره راغلی دی) پرانسان څه وخت له زمانې څخه چې نه وو دی یو شی یاد کړی شوی (په یوه نامه سره).

تفسير: بېشکه پر انسان باندې داسې یو وخت تېر شوی دی چې هیڅ نوم او نښه یې نه وه، بلکه یو غیر مذکور په انسانیت څیز وو، او یو جز وو له اجزاوو د عناصرو او د نطفې، بیا یې څومره مدّت طي کړ چې د نطفې په شکل کې راووت.

اِنَّا خَلَقۡنَا الۡاِنۡسَانَ مِنۡ نُّطۡفَةٍ اَمۡشَاجٍ ۖ

بېشکه پیدا کړی دی مونږ انسان له نطفې څخه چې ګډوډه شوې ده (د نر او د ښځې).

تفسير: يعنې د نارينه او د ښځې د دوو ډولو اوبو څخه یې پیدا کړ.

تنبيه: د (امشاج) معنی مخلوط دی، نطفه د هغو غذاوو خلاصه ده، چې له مختلفو شیانو څخه روغه ده، نو ځکه د ښځې له اوبو څخه پرته (علاوه) یواځې همغه یو اوبو ته هم (امشاج) وایه شي، او پیدا کړ مونږ دغه انسان لره په دغه حال کې چې:

نَّبۡتَلِيۡهِ فَجَعَلۡنٰهُ سَمِيۡعًۢا بَصِيۡرًا ② اِنَّا هَدَيۡنٰهُ السَّبِيۡلَ اِمَّا شَاكِرًا وَّاِمَّا كَفُوۡرًا ③

ازمایو یې، نو ومو ګرځوو مونږ دغه (انسان) اورېدونکی او لیدونکی. بېشکه مونږ ورښوولې ده دغه (انسان) ته سمه لاره (په لېږلو د رسولانو او په دلائلو د عقل سره)، یا به وي دی شکر کوونکی او یا به وي دی ناشکره.

تفسير: يعنې له نُطفې څخه د وینې غوټه او له هغه څخه یې د غوښې یوه ټوټه جوړه کړه، همدا راز له څو څو ځلې اړولو او ګرځولو څخه یې هغه دې درجې ته ورساوه چې دی پخپلو غوږونو سره اوري، او په سترګو سره ویني، او له هسې قوّتونو څخه کار اخلي، چې بل کوم حیوان له هغو څخه کار نشي اخیستی، ګواکې نور ګرد د ده په مخ کې کاڼه او ړانده دي.

تنبيه: د ﴿نَّبۡتَلِيۡهِ﴾ معنی اکثرو مفسّرینو (امتحان) او ازموینه اخیستې ده، د بني آدم له پیدایښته دا غرض دی چې دی د الله تعالی په احکامو، امر، نهي او نورو مخاطب شي، او امتحان ترې واخیست شي، او ولیده شي چې دی تر کومې اندازې پورې د خپل الله تعالی د احکامو تعمیل او خپل اخلاص او وفاداري څرګندوي؟ نو ځکه هغه ته یې د اورېدلو، پوهېدلو اولیدلو قوّتونه وروبښل، چې پر هغوی باندې د شرعي تکالیفو مدار دی.

﴿إِنَّا هَدَيْنَاهُ﴾ الآية - يعنې ږومبی يې د اصلي فطرت او پيدايشي عقل او پوهې ځنې، بيا يې د عقليه او نقليه دلائلو په وسيله هغه ته د نېکۍ لاره وروښوده، چې د دې ښوونې اقتضاء داسې ده چې ښايي ګرد انسانان په يوه سمه لاره باندې لاړ شي، خو د شاوخوا د حالاتو لامله او د خارجي عواملو اغېزې او د نورو عوارضو له سببه ګرد په يوه لاره باندې پاتې نشول، ځينو الله تعالى ومانه، او حق يې وپېژنده، او ځينو ناشکرۍ او ناحقى ته ملا وتړله، وروسته له دې نه الله أکرم شأنُهُ وأعظم برهانُه د دې دواړو د پای او انجام ذکر دغسې فرمايي:

إِنَّآ أَعْتَدْنَا لِلْكَٰفِرِينَ سَلَٰسِلَا۟ وَأَغْلَٰلًا وَسَعِيرًا ﴿٤﴾

بېشکه مونږ تيار کړی مو دی کافرانو ته ځنځيرونه او طوقونه او تود اور (لمبې وهونکی چې تل به په کې سوځي).

إِنَّ ٱلْأَبْرَارَ يَشْرَبُونَ مِن كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُورًا ﴿٥﴾ عَيْنًا يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ ٱللَّهِ

بېشکه ابرار نېکان څښي (په جنّت کې) له جامونو د شرابو ځنې چې وي ګډ له هغو سره کافور. چينه چې څښي به له هغې څخه (نېک) بندګان د الله.

**تفسير:** يعنې د شرابو هسې جامونه به څښي چې لږ څه کافور به په کې ګډ وي، دا کافور د دې دنيا د کافورو په شان نه دی، بلکه د جنّت د يوې خاصې چينې نوم دی، چې د الله تعالى له لوري په خاص ډول د الله تعالى مخصوصو او مقرّبو بندګانو ته د هغه له اوبو څخه ورکولی کيږي، ښايي چې د دې سوړوالی ښه رائحه او ورِم، مفرح، خاصيت، او د تک سپين رنګ لامله هغه ته کافور ويلی شي.

يُفَجِّرُونَهَا تَفْجِيرًا ﴿٦﴾ يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ

چې بيايي به (مؤمنان) دغې (چينې) لره (هر چېرته چې يې خوښه وي په بېولو سره). وفاء کوي (ابرار) په (هغه) نذر سره (چې يې واجب کړی وي په طاعت د الله کې، پر ځانونو خپلو باندې).

**تفسير:** يعنې دا چينه د هغو بندګانو په واک او اختيار کې ده، چې په هر لوري دوی اشاره وکړي؛ د دې د اوبو ويالې به همغه لوري بهيږي، ځينې وايي چې: د دې چينې اصلي منبع به د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم په لوړه ماڼۍ کې وي، چې له هغه ځايه به د ګردو انبياوو، اولياوو، صلحاوو او مؤمنينو ماڼيو ته د هغې ويالې وبهيږي والله أعلم، وروسته له دې نه الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُه د ابرارو د خصائلو داسې بيان فرمايي:

﴿يُوفُونَ بِٱلنَّذْرِ﴾ - يعنې هغه نذرونه چې پخپلو ځانونو باندې يې منلي وي؛ اداء کوي يې، ښکاره ده: کله چې پخپل ځان باندې لازم کړی څيز پوره کاوه شي؛ نو هغه خبرې چې د الله تعالى له لوري لازمې شوي دي څرنګه به پرېښودی شي؟.

وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُۥ مُسْتَطِيرًا ﴿٧﴾

او ويريږي (ابرار) له هغې ورځې چې شر يې ښکاره او تيت (څرګند) دی.

**تفسير:** يعنې د دې ورځې سختي او خرابي به درجه په درجه پر ټولو عامه، او ګردو لره نيوونکې وي، او هيڅوک به په کلي ډول له هغه ځنې محفوظ نه وي، الا من شاء الله !.

وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهٖ مِسْكِيْنًا وَّيَتِيْمًا وَّ اَسِيْرًا ۝

او (ابرار) ور کوي طعام خواړه پر محبّت میني د دغه (الله یا د طعام) مسکین اړ (مجبور) ته، او یتیم پلار مړي ته، او اسیر بندي ته.

تفسیر: یعنې د الله تعالی په محبّت کې خپل طعام او خواړه سره له دې چې دی پخپله ورته اړ او محتاج دی، او ډېر خواهش یې ورته کیږي؛ په ډېر اخلاص، شوق او ذوق سره مسکینانو، یتیمانو، او بندیانو ته یې ورکوي.

اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ جَزَآءً وَّلَا شُكُوْرًا ۝ اِنَّا نَخَافُ مِنْ رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا ۝

(وایي ابرار) بېشکه چې مونږ طعام خواړه درکوو تاسې ته خاص د الله تعالی د مخ لپاره (چې ویې وینو، او د هغه رضا مو په نصیب شي)، نه غواړو مونږ له تاسې څخه جزاء، بدل، او نه شکر ایستل. بېشکه مونږ ویریږو له ربه خپله له عذابه د ورځې تریو مخې (غمجنې) ډېرې سختې تریو مخې نه.

تفسیر: یعنې دا طعام او خواړه ورکوونکي به د حال په ژبې سره داسې ویونکي وي، او که چېرې مصلحت وي او لازم یې وګڼي؛ د قال په ژبې سره یې هم ویلی شي.

﴿اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ﴾ څمونږ خواړه ورکول په دې خاطر دي چې الله تعالی ووینو، او د هغه رضا او ثواب مو په برخه شي، له تاسو څخه څه بدله، عوض نه غواړو، او نه درڅخه د شکر ایستلو او د منني غوښتونکي یو.

﴿اِنَّا نَخَافُ﴾ «بېشکه مونږ ویریږو له ربه خپله له عذابه د ورځې تریو مخې غمجنې، ډېرې سختې تریو مخې نه».

فَوَقٰىهُمُ اللّٰهُ شَرَّ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰىهُمْ نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا ۝

نو وبه ساتي دوی لره الله (په سبب د حسناتو د دوی) له شره سختی د دغې ورځې، او ور به کړي دوی ته تازګي او حسن د مخونو (او خوشالي د زړونو).

تفسیر: یعنې له هغه شي څخه چې دوی ډېر ویرېدل؛ الله تعالی دوی له هغه څخه محفوظ او مأمون وساتل، او د هغوی مخونو ته یې ښایست او تازګي، او زړونو ته یې خوښي او سرور ورعطاء کړ.

وَجَزٰىهُمْ بِمَا صَبَرُوْا جَنَّةً وَّحَرِيْرًا ۝

او جزاء به ورکړي دوی ته (الله) په سبب د صبر د دوی جنت او (جامې) وریښمینې.

تفسیر: یعنې کله چې دې خلقو د دنیا پر تنګسی او سختیو باندې صبر کاوه، او له ګناهونو او معاصیو څخه یې ځانونه ساتل، او په طاعت او عبادت کې قائم اوسېدل؛ نو ځکه الله تعالی د هغوی د آرام او راحت لپاره دوی ته د جنّت ښه نعماء، اعلی باغونه، او فاخره لباسونه مرحمت کړل، اوس الله اکرم شأنُه وأعظم برهانُه د دغو جنّتیانو یو بل ښه وضعیت داسې بیان فرمایي:

مُّتَّكِـِٕيْنَ فِيْهَا عَلَى الْاَرَآئِكِ لَا يَرَوْنَ فِيْهَا شَمْسًا وَّلَا زَمْهَرِيْرًا ۝

حال دا چې تکیه کوونکي به وي په هغه (جنّت) کې پر تختونو باندې (د باچایانو او ټولواکانو په ډول)، نه به وینې دوی هلته شمس لمر (ګرمي) او نه زمهریر (ساړه).

**تفسير:** يعنې د جنّت موسم به ډېر معتدل او برابر وي، نه د تودوخې او نه د يخنۍ او نه به نور څه ربړ او تکليف هلته وي.

وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَٰلُهَا وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا تَذْلِيلًا ﴿۱۴﴾

حال دا چې نژدې به وي پر دوی باندې سيوري (د ونو) د هغه، تابع او مسخّرې ټيټې کړی شوي به وي مېوې د هغه په تابعداری مسخّر بدلو ټيټېدلو سره (چې شوکول به يې اسان وي).

**تفسير:** يعنې د ونو څانګې د خپلو مېوو سره دوی ته ډېرې نژدې کيږي، او د هغوی مېوې به ورڅوړندې او د دوی په واک کې به وي، او جنّتيان په هر حالت او هر ځای کې چې وغواړي، اعمّ له دې څخه چې ولاړ وي يا ناست يا ملاست، بې له تکلّفه هغه ټولولی او شوکولی شي.

وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِـَٔانِيَةٍ مِّن فِضَّةٍ وَأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيرَا۠ ﴿۱۵﴾ قَوَارِيرَا۟ مِن فِضَّةٍ

او ګرځولی به شي پر دغو (ابرارو) باندې (په دغه جنّت کې د) شيشو جامونه له سپينو زرو او ګلاسونه صراحي چې وي به (دغه ظروف) په شان د شيشو. هسې شيشې چې له سپينو زرو به وي (صاف به وي د شيشو په شان، چې ظاهر به يې له باطن او باطن به يې له ظاهره ښکاري).

**تفسير:** يعنې دا ظروف لوښي به په اصل کې د سپينو زرو څخه جوړ وي، او ډېر سپين بې داغه او خوښي ښونکي، او داسې صاف او شفاف ا و ځلېدونکې به وي، چې لکه شيشې غوندې به ښکاري، او د هغه د منځ شيان به له باندې څخه له لرې ليده کيږي.

قَدَّرُوهَا تَقْدِيرًا ﴿۱۶﴾

په اندازه کړي به وي هغه (جامونه ساقيانو د جنّت جنّتيانو ته) اندازه کول.

**تفسير:** يعنې يو جنّتي هومره چې څښلو ته ضرورت لري، او زړه يې غواړي؛ په هغه مېچ او اندازه سره به سم او برابر په هغه کې شراب وي، چې نه به ترې لږېږي، او نه به ترې زياتيږي، يا په هره اندازه چې جنتيان پخپلو زړونو کې ټاکلې او ګرځولې وي؛ بې له تزييده او بې له تنقيصه سم د دوی له غوښتنې سره ورته وړاندې کيږي.

وَيُسْقَوْنَ فِيهَا كَأْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنجَبِيلًا ﴿۱۷﴾

او ورڅښول کيږي به جنتيانو ته په جنّت کې جامونه د شرابو چې وي به ګډ له هغه سره زنجبيل.

**تفسير:** يعنې د شرابو جام يو هغه وو چې د هغه ګډ جنتي کافور دی، دويم يې هغه دی چې زنجبيل (سونډ) ورسره ګډوي، مګر دا د دې دنيا زنجبيل او سونډ ونه ګڼه شي، ځکه هغه يوه چينه ده چې «سلسبيل» نوميږي، د سونډ تأثير تود دی، او په غريزيه حرارت کې انتعاش پيدا کوي، او عرب هغه ډېر خوښوي.

په هر حال سره په کوم خاص مناسبت سره دې چينې ته «زنجبيل وايي»، د نېکانو په جامونو کې د هغه لږ څه ګډون کاوه شي، په اصل کې دا چينه لويو عالي مقامو مقرّبينو لره ده، والله أعلم.

عَيْنًا فِيهَا تُسَمّٰى سَلْسَبِيلًا ﴿۱۸﴾

چینه په دغه (جنّت کې چې) نوم یې اینبودلی شوی دی په سلسبیل سره.

تفسیر: د «سلسبیل» معنی صافې بهېدونکې اوبه دي، (کذا في الموضح)، او ځکه ورته «سلسبیل» وایي چې آسانه تیرېږي له حلقه، او ډېرې لذیذې او خونده ورې دي په څښلو کې، او هر چېرته چې د جنّتي زړه وغواړوي، همغلته ورته بهیږي.

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ

او ګرځي پر دغو جنّتیانو باندې هلکان تل پاتې شوي (پخپل حال).

تفسیر: یعنې تل به هلك پاتې کیږي، یا به له جنّتیانو څخه هیڅ نه اخیست کیږي، او تل تر تله به د هغوی په خدماتو کې مشغول وي.

إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَنْثُورًا ﴿۱۹﴾

کله چې ووینې ته دوی؛ ګڼې به هغوی (په صفایي کې) لکه مرغلرې خورې شوې.

تفسیر: یعنې پخپل حسن، جمال، صفایي او ښایست سره په هر لوري ګرځي، او داسې خوش منظر معلومیږي لکه چې د ډېرو ځلېدونکیو او ښایسته مرغلرو په شان پر ځمکې باندې خواره شوي وي، او تخصیص د «منثور» لپاره د دې دی؛ چې دا ښایسته او ښې ښکارېږي له مرغلرو منظومه وو او پییلو شویو څخه.

وَإِذَا رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيمًا وَمُلْكًا كَبِيرًا ﴿۲۰﴾

او هر کله چې وګورې ته دغه (جنّت) ته؛ نو وبه وینې ته نعمتونه (ډېر چې صفت یې کېدی نشي) او ملك باچایي لویه (لازواله چې انتهاء او زوال نه لري).

تفسیر: یعنې د جنت حال او احوال څه ووایه شي، که څوك یې ووینې؛ نو ور معلومیږي چې په جنّت کې به څه عظیم الشأن نعمتونه او څومره لویه لا زواله بېمثاله باچایي یوه معمولي او ادنی جنّتي ته ور په برخه کیږي، رزقنا الله تعالی منها بمنّه وفضله.

عٰلِيَهُمْ ثِيَابُ سُنْدُسٍ خُضْرٌ وَإِسْتَبْرَقٌ

له پاسه پر دوی باندې به کالي د نریو وربښمو وي چې شنه به وي، او د غټو وربښمو نه.

تفسیر: یعنې نري او غټ دوه ډوله د وربښمو کالي به جنّتیانو ته ورکاوه کیږي.

وَحُلُّوا أَسَاوِرَ مِنْ فِضَّةٍ

او وابه غوسته شي (دوی ته) باهوګان له سپینو زرو.

تفسیر: په دې سورت کې درې ځایه د سپینو زرو، د لوښیو، ګاڼو او نورو ذکر راغلی دی، په بل ځای کې د سرو زرو ذکر شوی دی، ممکن دي چې دا هم وي او هغه هم وي، ځینو ته به دا ورکاوه شي، او ځینو ته به هغه، یا به کله دا او کله به هغه ورواړاندې کیږي.

وَسَقٰىهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا ﴿۲۱﴾

او ور وبه څښي دغو (جنّتيانو ته) رب د دوی شراب طهور (څښاك ښه پاكيزه).

**تفسير:** يعنې له ګردو نعمتونو وروسته د شراب طهور يو جام به د حقيقي مالك له لوري ورکاوه شي، چې نه په کې نجاست وي، او نه کدورت، نه به ورسره څه درد او الم او نه به بدبويي وي، او د هغه له څښلو څنې به زړه پاك او ګېډه صفا کيږي، له څښلو څخه وروسته له بدن څخه به داسې عرق او خولې وځي، چې د هغه وږمه او خوشبويي به د مسکو په څېر زړونه خوښوي.

اِنَّ هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَآءً وَّكَانَ سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿۲۲﴾ اِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ تَنْزِيْلًا ﴿۲۳﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ

(او وبه فرمايي الله دوی ته چې) بېشکه دغه (نعمتونه) وو تاسې لره جزاء بدل (د اعمالو ستاسې)، او دی سعي عمل زيار ستاسې مشکور مقبول. بېشکه مونږ همدا مونږ نازل کړی مو دی په تا باندې (ای محمده !) قرآن نازل کول. نو صبر کوه حکم د رب خپل ته (په نصرت د تا).

**تفسير:** يعنې د زيات اعزاز او اکرام او د زړونو د خوښې لپاره به ويلی شي چې: دا ستاسې د اعمالو بدل دی، ستاسې زيارونه مقبول او مشکور او سعي مو ومنلی شوې، د دې زېري له اورېدلو څنې به جنّتيان لا خوښيږي.

﴿اِنَّا نَحْنُ﴾ الآية ـ «بېشکه مونږ نازل کړی مو دی په تا باندې ای محمده قرآن نازلول، نو صبر کوه حکم امر د رب خپل ته په نصرت د تا»، چې ستا زړه مضبوط شي، او خلق ورو ورو پخپلو ښو او بدو باندې ښه وپوهيږي او معلوم يې کړي، چې جنّت د کومو اعمالو په وسيله موندل کيږي، که په داسې پوهولو سره هم ونه پوهېده، او پخپل ضد او عناد کې ټينګ پاتې شو؛ نو تاسې د خپل پروردګار په حکم باندې همغسې ټينګ ودرېږئ، او د وروستنۍ فيصلې انتظار وکړئ !.

وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ اٰثِمًا اَوْ كَفُوْرًا ﴿۲۴﴾

او مه منه خبره له دوی څنې د هيڅ يو ګنهګار او ناشکره (چې تا بولي کفر ته).

**تفسير:** يعنې «عتبه» او «وليد» او د قريشو نور کفار تاسې ته دنيوي ترغيبونه درکوي، او ښه باغونه درښيي، او په دې تحريص او تطميع سره غواړي چې تاسې د تبليغ له فرضه واړوي، نو الله تعالی تنبيه فرمايي چې: تاسې د دوی په خبرو باندې مه تېروځئ، ځکه چې د ګنهګار، فاسق او ناشکر کافر له وينا منلو څخه پرته له نقصانه بل څه په لاس نه درځي، نو د داسې شريرانو او بدبختانو خبرو ته غوږ نيول نه دي پکار.

وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا ﴿۲۵﴾

او يادوه نوم د رب خپل صباح ګهيځ او بېګا ماښام.

**تفسير:** يعنې تل هغه پخپل زړه کې ولره !، په تېره بيا په دې دوو وختونو کې يې هرومرو يادوه !، ګردو اندېښنو علاج همدا د الله تعالی ذکر دی.

وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا ﴿۲۶﴾

او په څه برخه د شپې کې نو سجده کوه هغه (الله) ته، او نسبت د پاکۍ کوه دغه (الله) ته په شپه اوږده کې (يعني تهجّد کوه او).

تفسير: لمونځ وکړه !، ښايي چې له دې ځنې د مغرب او عشاء لمونځونه يا به تهجّد مراد وي، که له ﴿وَمِنَ الَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهٗ﴾ څخه تهجّد مراد وي؛ نو دلته به له تسبيح ځنې د هغه متبادره معنی اخيسته کيږي، يعنې د شپې له لوري علاوه پر تهجّد پر ډېرو تسبيحو او تهليلو کې مشغول شئ !، که له ړومبي «فاسجد» ځنې د ماښام او ماسختن لمونځ مراد وي؛ نو دلته به له تسبيح څخه تهجّد مراد وي.

اِنَّ هٰٓؤُلَآءِ يُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُوْنَ وَرَآءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيْلًا ﴿۲۷﴾

بېشکه دا (خلق چې کُفّار دي) خوښوي ژر تېرېدونکې (دنيا)، او پرېږدي وروسته له ځانه ورځ سخته (د عُقبی چې د هغې لپاره څه تياری او عمل نه کوي).

تفسير: يعنې دا خلق که ستاسې پند او هدايت نه مني، د هغه سبب د دنيا مينه ده، کله چې دنيا يو ژر په لاس راتلونکې څيز دی، دوی هم دا غواړي، او د قيامت له درنې ورځې څخه غافل شوي دي، او هيڅ د هغه په فکر کې نه دي لويدلي.

نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ وَشَدَدْنَآ اَسْرَهُمْ ۚ وَاِذَا شِئْنَا بَدَّلْنَآ اَمْثَالَهُمْ تَبْدِيْلًا ﴿۲۸﴾

مونږ پيدا کړي مو دي دوی، او بيا مو مضبوط کړل پيدايښت بندونه اندامونه د دوی، او کله چې اراده وفرمايو؛ بدل به راوړو مونږ امثال د دوی (په خلقت کې) بدل.

تفسير: يعنې اول مو تاسې پيدا کړئ، او ستاسې ګرد بندونه او اندامونه مو جوړ کړي دي، نن څمونږ هغه قدرت نه دی سلب شوی، هر کله چې مونږ وغواړو؛ ستاسې دا موجوده ژوندون پای (انجام) ته رسوو، او همداسې يوه بله هستي بيا پيدا او ودرولی شو، يا دا مطلب که دا خلق يې ونه مني؛ نو مونږ قادر يو، هر کله چې وغواړو د دوی په ځای به نور داسې سړي راولو چې ګرد سره به مطيع او فرمانبرداران وي، او د دوی په شان به سرکشان نه وي.

اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ ۚ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ﴿۲۹﴾

بېشکه دغه (سورت) تذکره پند دی (خلقو لره)، نو هر هغه څوک چې اراده کوي نيسي طرف د رب خپل ته لاره (په خير او طاعت سره؛ پس ودې نيسي !).

تفسير: يعنې په جبر او زور سره په دوی باندې خبرې منل ستا کار نه دی، د پاک قرآن په وسيله پند ورکوئ !، وروسته له دې د هر چا اختيار دی، هر څوک چې زړه يې غواړي د خپل پروردګار تر خوښی پورې د رسېدلو لاره دې ځان ته جوړه کړي !.

وَمَا تَشَآءُوْنَ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ ۚ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۳۰﴾

او اراده نشئ کولی تاسې (د هيڅ لاره د طاعت) مګر هغه چې اراده وفرمايي الله (تاسو ته)، بېشکه الله دی (پر هر شي باندې) ښه عالم دانا ښه حکمت والا دی.

**تفسیر:** یعنې ستاسې غوښتنه هم پرته د الله تعالی له غوښتنې نشي کېدی، ځکه چې د بنده مشیت د الله تعالی د مشیت تابع دی، دغه الله تعالی ته ښه معلوم او ښکاره ده چې د چا استعداد او قابلیت څه قسم دی؟ نو سم له هغه سره د هغه مشیت کار کوي، بیا پاک الله هر چا لره چې اراده ولری د هدایت نو پخپل مشیت په سمې لارې باندې یې بیایي، او چا سر لره چې د ګمراهۍ اراده وکړی نو په ګمراهی کې یې پرېږدي.

يُّدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِىْ رَحْمَتِهٖ ؕ وَالظّٰلِمِيْنَ اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۳۱﴾

داخلوي (الله) هغه څوك چې اراده (د دخول یې) وفرمایي په رحمت خپل کې، او ظالمان (کافران چې دي) تیار کړی دی (الله) دوی ته عذاب ډېر دردناك.

**تفسیر:** یعنې د هر چا استعداد چې ښه وي؛ هغه ته به په نېکی باندې د تللو توفیق وروښبې، او د خپل رحمت او فضل مستوجب به یې وګرځوي.

تمّت سورة الدّهر بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ المُرسَلَاتِ

«د (المرسلات) سورت مكي دی، پرته (علاوه) له (۴۸) آيته څخه چې مدني دی، (۵۰) آيته (۲) ركوع لري، په تلاوت كې (۷۷) او په نزول كې (۳۳) سورت دی، وروسته د (الهمزة) د سورت څخه نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

وَٱلۡمُرۡسَلَٰتِ عُرۡفٗا ① فَٱلۡعَٰصِفَٰتِ عَصۡفٗا ②

قسم دی په هغو بادونو چې لېږلی شوي دي (د الله له طرفه) پی در پی پرله پسې (چې زړونه خوښوي)، (يا) قسم دی په هغو ملائكو لېږليو شويو په نېكيو سره (چې امر او نهي دي). بيا قسم دی په هغو سخت خوځوونكيو بادونو باندې چې الوځي په زور سره، (يا) پس قسم دی په هغو ملائكو تلونكيو په حكم د الله سره ګړندي تلل.

تفسير: يعنې اول پسته او ښه نرۍ هوا چليږي، چې له هغې سره به د مخلوقاتو ډېر توقّعات او منافع تړلي وي، بيا لږ څه وروسته همغه يوه نرمه او پسته هوا د يوې سختې سيلۍ او طوفان جاكړ پشان به الوځي، او داسې خرابي او وراني به راولي چې خلق به په نارو سورو شي، همدا د دنيا او د آخرت مثال وګڼئ !، ډېر داسې كارونه دي چې خلق هغه اوس مفيد او نافع ګڼي، او پر هغه باندې د دوی لويې هيلې تړلې وي، او ډېر توقّعات ترې لري، خو همغه كار كله چې د قيامت په ورځ پخپل اصلي او ډېر سخت او ويروونكي صورت سره راښكاره شي؛ نو ګرد خلق به ترې پناه غواړي.

وَٱلنَّٰشِرَٰتِ نَشۡرٗا ③ فَٱلۡفَٰرِقَٰتِ فَرۡقٗا ④

قسم دی په هغو خواره كوونكيو بادونو باندې (باران لره) پورته كول خورول. بيا (قسم دی) په (هغو ملائكو يا آيتونو د قرآن چې) جدايي كوي (په منځ د حق او باطل كې) جدايي كول.

تفسير: يعنې پر هغه هواوو باندې قسم دی چې بخارات او نور له ځانه سره راپورته كوي، او وريځې پيدا كوي، او په فضاء كې يې خوروي، بيا په هر هر ځای كې چې د هغوی رسونه مقصود وي؛ د الله تعالی په امر هغه هم هغلته رسوي او ويشي يې، او له وريا (باران) څخه وروسته بيا وريځې يوه لوري بل لوري ته خوروي، هوا يواځې له وريځې سره مخصوصه نه ده، بلكه د هغه عمومي خاصيت دا دی چې د ګردو شيانو كيفيات لكه ښې او بدې وږمې او نور خوروي، او د هغوی لطيف اجزاء ځنې بېلوي، او له ځان سره يې وړي، او يو څيز له يوه ځايه جلا كوي، او له بل سره يې لګوي.

فَٱلۡمُلۡقِيَٰتِ ذِكۡرًا ⑤ عُذۡرًا أَوۡ نُذۡرًا ⑥

پس قسم دی په هغو (پرښتو) چې راښكته كوونكې د ذكر، وحي، پند دي. لپاره د لرې كولو د عذر (الزام د مؤمنانو) او لپاره د ويرولو (الزام د كافرانو).

تفسير: شاه عبد العزيز (رحمه الله) له ﴿فَٱلۡمُلۡقِيَٰتِ ذِكۡرًا﴾ څخه هم هوا مراد كړې ده، ځكه چې د وحي غږ د خلقو غوږونو ته رسونه هم د هوا كار دی.

**تنبیه:** «المرسلات، العاصفات، الناشرات، الفارقات، الملقیات» د پنځو واړو مصداق ځینو هواوې ټاکلې (مقرر کړې) دي، ځینو پرښتې ځینو پیغمبران او ځینو مفسّرینو لکه چې ړومبنیو څلورو څخه هواوې مراد کړي دي، او له پنځمې څخې یې پرښتې اخیستې دي چې په ترجمه کې ښکاره ده.

شاه عبد القادر (رحمه الله) لیکي چې: «له وحي څخه د کافرانو د دغه الزام لرې کول منظور دي، چې د سزا په وخت کې ونه وایي چې مونږ نه وو خبر، او هغو کسانو ته چې په برخه کې یې ایمان دی؛ د وېرې اورول دي چې ایمان راوړي».

إِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ ۝٧

بېشکه څه وعده چې له تاسې سره کړی شوې ده (د قیامت) خامخا واقع کېدونکې ده.

**تفسیر:** یعنې د قیامت او د آخرت د حساب او کتاب او جزاء او سزا وعده هرومرو پېښېدونکې ده.

فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ ۝٨ وَإِذَا السَّمَاءُ فُرِجَتْ ۝٩

نو کله چې ستوري تور شي (رڼا نور یې ورک شي). او کله چې اسمان څېرې کړ شي.

**تفسیر:** یعنې ستوري محوه بې رڼا خړپړ کیږي، اسمان به ټوټې ټوټې را لوېږي، او د څیرېدلو له وجې به په هغه کې ورونه او کړکی څرګندېږي.

وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ ۝١٠

او کله چې غرونه والوځولی شي (ویستل شي له ځایونو خپلو نه) او روان شي.

**تفسیر:** یعنې د پاغوندو په شان په هوا کې الوځي، او دې خوا او هغې خوا ګرځي.

وَإِذَا الرُّسُلُ أُقِّتَتْ ۝١١

او کله چې د پیغمبرانو وخت وټاکلی شي (او جمع کړل شي لپاره د شهادت).

**تفسیر:** چې له وړاندې وروسته ټاکلي وقت سره سم د خپلو امتیازاتو سره د ربّ العزّت په دربار کې حاضر شي.

لِأَيِّ يَوْمٍ أُجِّلَتْ ۝١٢ لِيَوْمِ الْفَصْلِ ۝١٣

لپاره د کومې ورځې وروستي کړی شوي دي (دا څیزونه)؟. لپاره (د شهادت) د ورځې د فیصلې.

**تفسیر:** یعنې پوهېږئ چې دا فیصله کومې ورځې لپاره ساتلی شوې ده؟ هغې ورځې ته چې په هغې کې به د هرې خبرې بیخي او آخري او قطعي فیصله وي، بېشکه که الله تعالی غوښتلی؛ اوس به یې د هر څیز فیصله لاس په لاس او سمدلاسه هم کوله، خو د ده د حکمت اقتضاء داسې نه ده، چې اوس هر څوک پخپلې سزا ورسوي.

وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۝١٤ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ۝١٥

او څه شي پوه کړی یې ته چې څه ده ورځ د فیصلې. افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په ورځې د قیامت باندې).

تفسیر: یعنې هیڅ مه پوښتنه چې د فیصلې ورځ به څرنګه وي؟ بس دومره وپوهېږه چې دروغ ویونکیو لره به د تباهۍ ډېره سخته ورځ وي، او له سختو مصابو او رېړو سره به په کې مخامخ کېدونکي وي.

أَلَمْ نُهْلِكِ الْأَوَّلِينَ ﴿١٦﴾ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِينَ ﴿١٧﴾ كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ ﴿١٨﴾

آیا نه دي هلاک کړي مونږ (مجرم خلق) رومبني؟ (بلکه هلاک کړي مو دي په سبب د تکذیب سره). بیا ورلېږو په هغو پسې وروستني (مجرمان هم لکه چې له دوی سره مو معامله وکړه). همداسې کار کوو مونږ له ټولو مجرمانو ګنهګارانو سره.

تفسیر: د قیامت منکرانو داسې ګڼل چې د دنیا دا لوی ژوندون به په څه ډول پای (آخر) ته ورسیږي؟ او څرنګه به باور کېدی شي چې دا ګرد بنـي آدمان به په یوه ورځ کې سره مړه او انساني نسل به بېخي فنا کیږي؟دا دوزخ او عذاب ویرول ګرد سره فرضي او ساختګي راښکاري، نو د دې چټي خبرو په ځواب کې فرمایي چې پخوا له دې څخه ډېر خلق مړه شوي دي، او ډېر اقوام او ټېرونه د خپلو ګناهونو په بدل د تباهۍ سره مخامخ شوي دي، د وروستنیو په نسبت به هم داسې د موت او هلاکت سلسله جاري وي، نو پاک الله فرمایي: کله چې ځمونږ قدیمي عادت د مجرمانو په نسبت معلوم او څرګند دی؛ نو وپوهېږئ چې د دې پېړۍ کُفّار به هم په همغو پخوانیو کُفّارو پسې شړو.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٩﴾

افسوس هلاکت خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په بعث بعد الموت باندې).

تفسیر: یعنې هغه کسان چې د قیامت راتګ یې د دې لپاره دروغ ګڼه چې ګرد انسانان به څرنګه یو ځلې پناه کیږي؟ او په څه ډول به ګرد مجرمان په یوه وخت کې ګرفتار او په سزا رساوه کیږي؟

أَلَمْ نَخْلُقْكُمْ مِنْ مَاءٍ مَهِينٍ ﴿٢٠﴾ فَجَعَلْنَاهُ فِي قَرَارٍ مَكِينٍ ﴿٢١﴾ إِلَىٰ قَدَرٍ مَعْلُومٍ ﴿٢٢﴾

آیا نه یئ پیدا کړي مونږ تاسې له اوبو سپکو (د مني) ځنې؟. نو ومو ساتلې مونږ هغه (اوبه) په ځای د قرارۍ ټینګ کې (چې د مور رحم دی). تر نېټې معلومې (وخت د ولادت) پورې.

تفسیر: یعنې د یوې وقفې په ځای کې یې محفوظ وساته، له دې ځنې مراد د مور رحم دی، چې هغه ته (بچه دان) هم وایه شي، او علی الأکثر ووړ کی هلته تر نهو میاشتو پورې وي، او خپل خلقت کاملوي.

فَقَدَرْنَا فَنِعْمَ الْقَادِرُونَ ﴿٢٣﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٤﴾

پس قادر یو مونږ په دغو کارونو باندې پس ښه ټیک قادران یو مونږ. افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په ایمان او په نعمت باندې).

تفسیر: یعنې د اوبو هغه څاڅکي یې او تر نېټې معلومې پورې په هغه ټینګ او مضبوط ځای (رحم) کې چې اکثر نهه میاشتې وي؛ وساته په تدریج سره یې پـوره کړ، او له هغه څخه یې په ورو ورو یو کامل انسان جوړ کړ، له دې ځنې ځمونږ په قدرت او قوت باندې وپوهېږئ، نو آیا دا الله تعالی دا انسان وروسته له مړینې څخه نشي ژوندی کولی.

تنبیه: ځینو د «قدّرنا» معنی اندازه کول اخیستي دي، یعنې «اندازه مو کړ» او مونږ یو ښه اندازه کوونکي، چې په دومره مدت کې له مونږ ځنې هیڅ یو ضروري څیز نه دی پاتې، او نه مونږ کوم زائد او بېکار شی پیدا کړی دی.

(اوس الله تعالی جل وعلا شأنُه وعظم برهانُه ذکر کوي د خپل احسان پر خپلو بندګانو او داسې فرمایي:)

أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا ﴿٢٥﴾ أَحْيَاءً وَأَمْوَاتًا ﴿٢٦﴾

آیا نه ده ګرځولې مونږ ځمکه جمع کوونکې (په شاه خپلې). ژوندیو لره او مړیو لره (په ګېډه، نس خپل کې)؟.

**تفسیر:** یعنې ګرد ژوندي مخلوقات پر همدغې ځمکې باندې د خپل ژوندون چارې برابروي، او د دوی مړي هم په همدې ځمکې کې خښیږي، او ورته رسیږي، انسان ته ژوندون د همدې خاورې په وسیله په برخه شوی دی، او له مړینې ځنې وروسته یې همدا خاوره د هستوګنې ځای دی، نو آیا بیا دویم کرت له دې خاورې ځنې د هغه پورته کېدل کومه مشکله خبره ده؟.

وَجَعَلْنَا فِيهَا رَوَاسِيَ شَامِخَاتٍ وَأَسْقَيْنَاكُمْ مَاءً فُرَاتًا ﴿٢٧﴾

او پیدا کړي دي مونږ په دې (ځمکه) کې غرونه لوی او لوړ، او در ومو څښلې تاسې ته اوبه خوږې تنده ماتوونکې.

**تفسیر:** یعنې په همدغې ځمکې کې مو لکه غر غوندې دروند او سخت جسم پیدا کړی دی، چې له خپله ځایه هیڅ نه خوځیږي، او په همدې ځمکې کې مو د اوبو چېنې در بهولې دي، چې د خپلې نرمۍ او سیلان په سبب تل ترتله بهیږي، او په ډېر سهولت سره یې څښونکي خړوبیږي.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٨﴾

افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په دغو مخلوقاتو او نعمتونو باندې).

انْطَلِقُوا إِلَى مَا كُنْتُمْ بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿٢٩﴾

ځئ ولاړ شئ ! هغه څیز ته چې وئ تاسې چې په هغه (عذاب د اور) به مو دروغ ویل په دنیا کې.

**تفسیر:** یعنې د قیامت په ورځ کې به منکرانو ته داسې ویل کیږي، بیا به وویل شي د الله له جانبه منکرانو ته داسې چې:

انْطَلِقُوا إِلَى ظِلٍّ ذِي ثَلَاثِ شُعَبٍ ﴿٣٠﴾

ځئ لاړ شئ تاسې !، هغه سیوري ته چې خاوند د دریو څانګو دی.

**تفسیر:** له «قتادة» رضي الله تعالی عنه او نورو ځنې مروي دي چې: د کافرانو د سیوري لپاره یو لوګی له دوزخه راوځي، چې په چاودلو سره به په دریو څانګو ویشل کیږي، وایي چې: دا لوګی به داسې وي چې له هر یوه منکر به له درې خواوو راچاپېر وي، یوه ټوټه به یې د سر له لوري د چترۍ په ډول ولاړه وي، او دویمه به یې په ښي لاس او دریمه به یې په کیڼ لاس، د حساب تر خلاصېدو پورې به دا خلق تر همدې سیوري لاندې وي، او ایمانداران او نېک کرداران به د عرش عظیم تر سیوري لاندې په ډېره هوسایي او آرام سره ولاړ وي.

لَّا ظَلِيلٍ وَلَا يُغْنِي مِنَ اللَّهَبِ ﴿۳۱﴾

چې نه به وي (دا سيورى) يخ، او نه به دفع كوي (له دوى نه هيڅ شى) له لمبې د اور نه.

**تفسير:** يعنې يوائې په نامه سره به سيورى وي، داسې كوم ګڼ سيورى به نه وي چې د هغه په وسيله د لمر له تودوخې يا د اور له لمبو ځنې منكرين ځان وژغوري، يا د تندې د داخلي او خارجي تودوخې مخه ونيسي.

إِنَّهَا تَرْمِي بِشَرَرٍ كَالْقَصْرِ ﴿۳۲﴾

بېشكه هغه (اور) ويشتل كوي په هسې بڅركو سرو سكروټو سره (چې هره يوه به يې وي) لكه لوړه (اوچته) غټه ماڼۍ.

**تفسير:** يعنې د دوزخ دغه سكروټې به دغومره لوړې وي، او هغه سكروټې به د لويې ماڼۍ د وچتوالي په مېچ را الوځي، يا به د هغه د سكروټو لويوالى د لويې ماڼۍ له لويوالي سره برابر وي.

كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ ﴿۳۳﴾

ګواكې هغه (بڅركي سكروټې قطار د) اوښانو زېړو تورو دى.

**تفسير:** يعنې كه له ماڼۍ سره تشبيه په لوړوالي (وچتوالي) كې وي؛ نو له اوښ سره به په لويوالي كې هم وي، كه هغه تشبيه په لويوالي كې وي؛ نو د ﴿كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ﴾ مطلب به داسې وي چې: ړومبى به د اور هغه بڅركي او سكروټې له ماڼۍ سره برابرې وي، بيا به ماتې او وړې شي د اوښ په اندازه به كيږي، يا به له اوښ سره په رنګ كې تشبيه ولري، خو په دې صورت كې هغو كسانو چې د ﴿جِمَالَتٌ صُفْرٌ﴾ ترجمه په «تورو اوښانو» سره كړې ده؛ هغه زياته ښه لګيږي، ځكه چې له روايتونو څخه دا ثابته شوې ده، چې د دوزخ اور تك تور دى، او عرب تورو اوښانو ته د دې لامله «صفر» وايي چې هغه عمومًا زېړوالي ته مائل وي، والله أعلم.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۳۴﴾

افسوس، هلاكت، خرابي ده په دغې ورځې كې دروغ ويونكيو لره (د داسې عذابونو).

**تفسير:** چې داسې به يې ګڼل چې قيامت نه دى راتلونكى، او كه راهم شي؛ نو مونږ به هلته په آرام او هوسايۍ كې يو.

هَٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ ﴿۳۵﴾

دا هغه ورځ ده چې (مفيدې) خبرې نه كوي (په كې كفّار، يا به نشي نيولى هيڅ حُجّت پر الله باندې).

**تفسير:** يعنې منكران به ځينو مواطنو كې بالكل خبرې ونه شي كړى، او په هغو مواطنو كې چې وينا كوي؛ هغه به نافع نه وي؛ نو په دې لحاظ سره به د هغوى ويل او نه ويل ګرد سره برابر وي.

وَلَا يُؤْذَنُ لَهُمْ فَيَعْتَذِرُونَ ﴿۳۶﴾

او اذن حكم به ونه كړ شي دوى ته چې عذر وغواړي (او نه به معذرت ورته څه نفع ورسوي).

**تفسير:** ځكه چې د معذرت او د توبې د قبلېدلو وخت تېر شوى دى.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۳۷﴾

افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په دغې ورځې د قیامت باندې).

تفسیر: یعني هغه کسان چې دغه ورځ د دنیا په عدلیو او محکمو باندې قیاس کوي، او داسې يې ګڼلې وي چې که هسې کومه موقع راوړاندې شوه؛ نو هلته به هم په غوړو خبرو او په عذرونو او ننواتو سره ځانونه خلاصوو.

هَٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ ۖ جَمَعْنَاكُمْ وَالْأَوَّلِينَ ﴿۳۸﴾

دا ورځ د فیصلې ده، ټولوو مونږ تاسې (ای مکذّبانو) او پخواني خلق هم.

تفسیر: د دې لامله چې ګرد سره راټول کړو، او بیا يې بېل بېل سره ودروو، او وروستنی او آخري حکم او فیصله ور واوروو.

فَإِن كَانَ لَكُمْ كَيْدٌ فَكِيدُونِ ﴿۳۹﴾

پس که وي تاسې سره لره څه کید، مکر چل (په دفع د عذاب کې)؛ نو وکړئ دغه کید، مکر، چل مو په ما باندې.

تفسیر: هو که ! دا ګرد مو دلته سره را ټول کړي، اوس دې یو له بله سره جرګې او مشورې وکړي !، هر هغه چم او مکر فرېب او تدبیر چې ځمونږ د نیولو لپاره جوړولی شي؛ هغه دې جوړ کړي، او راودې نبيي، په دنیا کې خو مو د حق په باطلولو او پټولو کې ډېر تدبیرونه کړي وو، نن مو هم له همغو تدبیرونو څخه هر یو مو چې زړه غواړي؛ راد مخه يې کړئ !.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۰﴾ ع

افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په حساب کتاب باندې).

تفسیر: چې په نورو يې هیله او اسره کړې وه، چې هغوی به مونږ په هر ډول سره چې وي؛ خلاصوي.

إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي ظِلَالٍ وَعُيُونٍ ﴿۴۱﴾ وَفَوَاكِهَ مِمَّا يَشْتَهُونَ ﴿۴۲﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۴۳﴾

خامخا پرهېزګاران ویریدونکي به (د جنّت د ونو) په سیورو کې وي، او په (غاړه د) چینو کې به وي. او په (منځ د) مېوو کې به وي له هغه قسمه چې غواړي يې دوی. (او وايي به مؤمنانو ته پرښتې چې) خورئ تاسې او څښئ تاسې (ای متّقیانو) په داسې حال کې چې لذّت اخیستونکي به يئ په سبب د هغو (صالحه اعمالو) چې وئ به تاسې چې کول به مو (په دنیا کې).

تفسیر: یعني ویریدونکي له عذابه د الله چې کوي پرهېز له کفر او عصیان څخه؛ ړومبی د عرش بیا د جنّت په سیوریو کې به وي، د مکذّبینو په مقابل کې يې دا د متّقینو حال بیان وفرمایه، ځکه چې «الأشیاء تعرفُ بأضدادها».

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿۴۴﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿۴۵﴾

(لکه چې جزاء مو متقیانو ته ورکړه؛) بېشکه مونږ دا رنګه ښه بدل ورکوو نېکانو ته. افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ویونکیو لره (په نعماوو د جنّت سره).

تفسير: چې په دنيا کې به يې مسلمانانو ته ويل: که له مړينې څخه وروسته بيا ژوندون وي؛ نو هلته به هم مونږ له تاسې څخه ښه يو، اوس چې هغوی تاسې په عيش او عشرت کې وينئ، او خپل ځانونه په تکليف او زحمت کې مومئ؛ نو دوی ته لا زيات تکليف رسيږي، او رسوا او ذليل کيږي، او وايي به منکرانو ته پرېښتې داسې چې:

كُلُوا وَتَمَتَّعُوا قَلِيلًا إِنَّكُم مُّجْرِمُونَ ﴿٤٦﴾

خورئ تاسو ! او نفع واخلئ (ای مکذّبانو له نعمتونو د فاني دنيا) لږې ورځې، بېشکه يئ تاسې مجرمان (ګنهګاران په عُقبی کې).

تفسير: دا خطاب مکذّبينو ته دی، چې څو ورځې نورې هم مزې وکړئ !، آخر به د دې خوړلو او څښلو بدل په ښه ډول له تاسې څخه اخيست کيږي، ځکه چې تاسې د الله تعالی مجرمان يئ، چې د هغه سزا پرته له حبس دوام او عذاب اليم څخه بل شی نه دی.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٧﴾

افسوس، هلاکت، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ويونکيو لره (له عذاب دردناک څخه).

تفسير: چې د دنيا په عيش عشرت، ساعت تېری او لذّتونو کې ډوب تللي وي، له دې څخه خبر نه وي؛ هغه څيز چې تاسې ته د ګلانو آمېل ښکارېده، او هغه مو پخپلو غاړو کې اچول، هغه يو تک تور سخت چيچونکی مار او منګور دی.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ارْكَعُوا لَا يَرْكَعُونَ ﴿٤٨﴾

او کله چې وويل شي (په دنيا کې) دغو (مکذّبينو) ته چې رجوع وکړئ، لمونځ وکړئ تاسې (الله ته)؛ نه کوي دوی رکوع لمونځ (الله ته).

تفسير: يعنې مکذّبين په لمانځه کې رکوع نه لري، يا د الله تعالی د عامو احکامو په مقابل کې غاړه نه ږدي.

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾

افسوس، هلاک، خرابي ده په دغې ورځې کې دروغ ويونکيو لره (په اوامر او نواهي د الله).

فَبِأَيِّ حَدِيثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُونَ ﴿٥٠﴾

پس په کومې خبرې باندې وروسته ما سوا له دې (قرآنه) به ايمان يقين راوړي (دغه منکران)، بلکه په بل شي باندې ممکنه نه ده پرته له (قرآن).

تفسير: يعنې له قرآن مجيد څخه لوړ او کامل او مؤثر بيان به د چا وي؟ که دا مکذّبين په دې باندې باور نه کوي؛ نو پر کومې خبرې به ايمان راوړي، آيا له دې پاک قرآن څخه وروسته د بل کوم کتاب د راتللو په انتظار کې دي، چې له اسمانه به راښکته شي؟.

تمّت سورة المرسلات بفضله، ولله الحمدُ والمنّة، وبه التوفيق والعصمة.

# سُورَةُ النَّبَإِ

«د (النبأ) سورت مکي دی، (۴۰) آیته (۲) رکوع لري، په نزول کی (۸۰) او په تلاوت کی (۷۸) سورت دی، وروسته له المعارج له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ۝١

له څه شي څخه پوښتنه کوي (کفار) یو له بله (یا له مؤمنانو څخه په طریقه د مسخرې څخه).

تفسیر: یعني خلك د کومې خبرې پته لګولو او د کوم څیز په تحقیق او تفتیش کی مشغول دي؟ آیا په هغو کی داسې څه قوت او استعداد شته چې له ډېرو پوښتنو څخه په هغه څیز باندې وپوهیږي؟ هیڅکله به ونه پوهیږي، یا دا چې کافران دانکار او استهزاء او دنه منلو او مسخرو په ډول (طریقه) په خپلو منځونو کې او هم له پیغمبر او مسلمانانو څخه پوښتي خانه ! هغه لویه ورځ کله راځي؟ ولې دومره وځنډېده (ایساره شوه) اوس ولې نه راځي؟

عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيْمِ ۝٢ الَّذِيْ هُمْ فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ ۝٣

پوښتنه کوي (کفار) دلویې خبرې (قیامت یا قرآن څخه چې مشتمل دی په بعث او نورو اخروي امورو). هغه (قرآن) چې دوی په کې مختلف دي (مؤمنان يي په حقانیت اقرار لري، او کافران ترې انکار کوي).

تفسیر: یعني دقیامت لویه ورځ چې دخلقو په منځ کې په هغې کې اختلاف او شخړه ده او کفار په هغه کې سره مختلف دي، په انکار او په شك کې، یا به تپوس کاوه مؤمنانو او کافرانو ټولو، مؤمنانو دپاره دزیادت دویرې او دکافرانو له جهته دمسخرې نه، څوك راتګ نه مني، څوك یې په خیال کې ورته تللي دي.

كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ۝٤ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ۝٥

نه دی کوي (دا اختلاف او پوښتني) ژر به وپوهیږي (دا کافران په عذاب دانکار باندې). بیا هیڅکله دی نه کوي (پوښتنې او اختلاف) ژر به وپوهیږي (دغه منکران په هغه څه باندې چې حق دی په هغه وقت کی چی مړه شي او وڅکي عذاب).

تفسیر: یعني پیغمبرانو ددنیا له اوله تر اوسه پورې خلق ډېر پوهولي دي، خو خلقو هیڅ کله له خپلو جګړو او پوښتنو مخ نه دی اړولی، اوس نژدې ده چی هغه ویروونکې ننداره هغوی ته په مخ کې راشي، نو هلته به وپوهیږي چی دقیامت لویه ورځ څه شی ده؟ او دهغې پوښتنې او جګړې په څه ډول دي؟.

اَلَمْ نَجْعَلِ الْاَرْضَ مِهٰدًا ۝٦

آیا نـه ده ګرځولې مونږ ځمکه فرش (بلکه ګرځولې ده مونږ ځمکه فرش لپاره دهستوګنې دخلقو).

تفسير: چې خلق په سکون او اطمينان پرې ډډې ولګوي، او هستوګنه پرې وکړي، او په آرامۍ او هوسايۍ (راحت) سره ناسته ملاسته په کې وکړي.

وَّالۡجِبَالَ اَوۡتَادًا ۞

او (آيا نـه دي ګرځولي مونږ) غرونه ميخونه (بلکه ګرځولي دي مونږ غرونه دځمکې ميخونه چې په سبب دهغو برقراره ده).

تفسير: لکه چې يو شی دميخونو په وهلو سره ټينګيږي او نه سره بيليږي او نه له خپل ځاي څخه دېخوا او هغې خوا ته خوځيږي؛ همدا راز دځمکې هغه ابتدائي خوزېدل او سره بيلېدل دغرونو د شته والي په سبب شول، او دالله تعالی په امر يې پـه ښکاره ډول يـو راز آرام په برخه شو.

وَّخَلَقۡنٰكُمۡ اَزۡوَاجًا ۞

او پيدا کړي يئ مونږ تاسې جوړه (نر او ښځه).

تفسير: يعنې الله تعالی د نارينه دسکون او راحت او هوسايۍ او وخت تيرولو دپاره ښځه دده جوړه کړې ده، يا به له ازواج څخه مراد راز راز اشکال (انواع اقسام) او نور شيان مراد وي.

وَّجَعَلۡنَا نَوۡمَكُمۡ سُبَاتًا ۞

او ګرځولی دی مونږ خوب ستاسې قطع د کارونو آرام راحت (دابدانو دتاسې).

تفسير: يعنې سړی چې په اوږدې ورځې کې له ډير کار او بار او خوځېدو ستړی ستومانه کيږي نو هر کله چې اوده شي؛ نو ګرده ستوماني او ستړتيا يې لرې کيږي، ګواکې خوب د آرامۍ او هوسايۍ نوم دی، وروسته له دې دخوب په مناسبت شپه هم ياديږي.

وَّجَعَلۡنَا الَّيۡلَ لِبَاسًا ۞

او ګرځولې ده مونږ شپه لباس (پټوونکې دهر څيز په تيارې خپلې سره).

تفسير: همغسې چې سړی پخپلو جامو سره ځانونه پټوي، همدارنګه دشپې تياره هم دخلقو پرده ساتي، او هغه چارې چې دپټيدلو وړ وي؛ زياتره يې دشپې په تياره کې کولی شئ، په هسې او ښکاره ډول هم سړی له ورځې زياتره دشپې له مخې ديخنۍ او نورو شيانو لامله جامې اغوستلو ته اړ او محتاج کيږي.

وَّجَعَلۡنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ۞

او ګرځولې ده مونږ ورځ (وقت دطلب) معاش (او د کارونو).

تفسير: زياتره هر راز چارې او ګټې دورځې له مخې کيږي، چې له هغو څخه هر څوک دخپل کور او کهول حوائج او اړتياوې لرې او خپل زړه ډاډه کوي، دشپې او ورځې په مناسبت د اسمان او لمر خبره هم کيږي، يا دا چې دځمکې په مقابل کې داسمان بيان هم کاوه شي.

وَبَنَيۡنَا فَوۡقَكُمۡ سَبۡعٗا شِدَادٗا ﴿١٢﴾

او جوړ کړي دي مونږ دپاسه دتاسې اوه محکم (اسمانونه چې نشته په کې هيڅ نښه دخلل او د نقصان).

تفسير: يعنې اووه کلک اسمانونه جوړ شوي دي، چې سره له دومره زياتو پېړيو مدتو دتېرېدلو اوس هم دپخوا په شان دي، او هيڅ يو کنډو په کې نشته، او داسې ټينګ او کلک دي چې له سره نه نړېږي، او هيڅ يو چاود او درز په کې نه ښکاري.

وَجَعَلۡنَا سِرَاجٗا وَهَّاجٗا ﴿١٣﴾

او ګرځولې پيدا کړې ده مونږ (په اسمان کې) ډيوه روښانه.

تفسير: يعنې لمر چې دتودوخې او رڼا دواړه اوصاف په کې شته.

وَأَنزَلۡنَا مِنَ ٱلۡمُعۡصِرَٰتِ مَآءٗ ثَجَّاجٗا ﴿١٤﴾

او نازلې راښکته کړېدي مونږ له نچوړونکو او وروونکيو (ورېځو) څخه اوبه ډېرې توئيدونکې پاکې صافې.

تفسير: څڅيدونکې وريځې يا څڅولې هواوې.

لِّنُخۡرِجَ بِهِۦ حَبّٗا وَنَبَاتٗا ﴿١٥﴾ وَجَنَّـٰتٍ أَلۡفَافًا ﴿١٦﴾

لپاره د دې چې راوباسو مونږ په هغو (اوبو) سره دانې، او واښه. او باغونه يو له بل سره ګڼ نژدې.

تفسير: يعنې ډېر ګڼ باغونه، يا دا چې په يوې ځمکې کې يې راز راز ونې او باغونه شنه کړي دي.

إِنَّ يَوۡمَ ٱلۡفَصۡلِ كَانَ مِيقَـٰتٗا ﴿١٧﴾

بېشکه ورځ د فيصلې (په مابين د خلقو کې قيامت دی) وخت (مقرر لپاره د ثواب او عقاب په حکم د رب ستا).

تفسير: د فيصلې ورځ به هغه وي چې ښه او بد داسې سره بيخي په کې بيلېږي، چې په هيڅ ډول اشتراک او اجتماع به په کې نه پاتې کيږي، هره نيکي خپل معدن ته او هره بدي خپل مرکز ته ورځي، ښکاره ده چې داسې کامل امتياز او افتراق په دې دنيا کې نشي کېدی.

يَوۡمَ يُنفَخُ فِي ٱلصُّورِ فَتَأۡتُونَ أَفۡوَاجٗا ﴿١٨﴾

هغه ورځ چې وپوکل شي (دويم ځلي) په صور (شپېلۍ) کې؛ نو راځئ به تاسې ډلې ډلې (له قبرونو نه موقف ته).

تفسير: يعنې ډېر زيات غونډونه او فرقې سره ټوليږي، چې د هغوی وېشونه د هغو په چارو، عقائدو او اعمالو پورې تړلي او مربوط دي.

وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتۡ اَبۡوَابًا ﴿۱۹﴾

او پرانستلی، څیرلی به شي اسمان (په دغه ورځ د قیامت کې)؛ نو شي به دروازې دروازې.

تفسیر: یعنې اسمان به داسې وپرانیستلی او ټوټې ټوټې شي چې له لرې به دروازې په کې ښکاري.

وَّسُيِّرَتِ الۡجِبَالُ فَكَانَتۡ سَرَابًا ﴿۲۰﴾

او روان به کړل شي غرونه، نو شي به لکه سراب (شګو ګل ځلېدونکې څمکه لکه اوبه).

تفسیر: لکه چې په ځلېدونکو شګو باندې له لرې څخه د اوبو ګمان کیږي؛ همداسې په هغو غرونو باندې به هم اټکل کاوه شي، څکه چې هغه به غرونه نه وي، بلکه د شګو ګل (سراب) به وي.

اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتۡ مِرۡصَادًا ﴿۲۱﴾ لِّلطّٰغِيۡنَ مَاٰبًا ﴿۲۲﴾

بېشکه دوزخ چې ځای د انتظار (د کتو لپاره د تېرېدونکیو دی). سرکشو لره د ورتللو او د هستوګنې ځای دی.

تفسیر: یعنې دوزخ د شریرینو په انتظار کې دی، او هلته د دوی د ورتللو او د هستوګنې ځای دی، یا بېشکه دوزخ څارونکی دی، او ځای د تېرېدلو د خلقو دی، نو مؤمن به ترې تېر شي، او کافر به په کې پرېوځي.

لّٰبِثِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَحۡقَابًا ﴿۲۳﴾

ځنډ کوونکي به وي دغه (سرکشان) په هغه (دوزخ) کې ډېرې زمانې (بلکه همېشه به په کې پاتې کیږي).

تفسیر: چې د شمېرلو مېچ یې نشته، سره له دې چې ډېرې زمانې او پېړۍ تیرېږي، خو د دوی مصیبت به پای ته نه رسیږي.

لَا يَذُوۡقُوۡنَ فِيۡهَا بَرۡدًا وَّلَا شَرَابًا ﴿۲۴﴾ اِلَّا حَمِيۡمًا وَّغَسَّاقًا ﴿۲۵﴾

نه به څکي دغه (سرکشان) په هغه (دوزخ) کې سړه (هوا اوبه)، او نه د څښلو (یخ) څیز. مګر پرته له ډېرو تودو اوبو او بهېدونکیو زوو له وینو سره.

تفسیر: یعنې نه د یخنۍ راحت او هوسایي مومي، نه به د څښلو کوم خوند هغوی ته پیدا کیږي، یواځې تودې اوبه وررسیږي، چې له هغو څخه د هغوی خولې سوځي، او کولمې یې پرې کیږي، او له ګېډې څخه د باندې لویږي، او بل هغه تکې زیړې بهېدونکې زوې وررسیږي، چې د نورو دوزخیانو له پرهارو څخه راووځي، الله تعالی دې مونږ له دې او له نورو دنیوي او اخروي هر راز ربړو څخه وساتي.

جَزَآءً وِّفَاقًا ﴿۲۶﴾ اِنَّهُمۡ كَانُوۡا لَا يَرۡجُوۡنَ حِسَابًا ﴿۲۷﴾ وَّكَذَّبُوۡا بِاٰيٰتِنَا كِذَّابًا ﴿۲۸﴾

جزاء (ورکوله شي دغو سرکشانو ته) موافقه (له اعمالو د دوی سره). بېشکه وو دوی (په دنیا کې) چې نه ویرېدل امید هیله یې نه لرله د حساب. او دروغ یې ګڼل آیتونه څمونږ په ډېر دروغ ګڼلو سره.

تفسیر: یعنې د هغه شي نه چې دوی ترې نه ویرېدل، او نه یې ترې هیله لرله؛ هم هغه وردمخه شو، او هغه خبره چې دروغ یې بلله؛ پخپلو سترګو یې ولیدله، اوس ګورو چې دوی څنګه تکذیب او انکار کوي.

وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَٰهُ كِتَٰبًا ﴿٢٩﴾

او هر څیز (له طاعته او معصیته) شمېرلی دی مونږ هغه په لیکلو سره (په لوح محفوظ کې لپاره د جزاء).

تفسیر: یعنې هر څیز د الله تعالی په ازلي او ابدي علم او پوهې کې شته، او د هغه د علم المحیط سره سم د لوح محفوظ په دفتر کې لیکلی دی، هیڅ یو ښه او بد کار د الله تعالی د علم له احاطې څخه د باندې نه دی، د یوې ورې ذرې پوښتنه او شمېر هم کوي، او وبه ویل شي دغو منکرانو سرکشانو ته په آخرت کې په وخت د وقوع د عذاب کې پردوی باندې د أکرم شأنه وأعظم برهانه له جانبه داسې چې:

فَذُوقُوا۟ فَلَن نَّزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾

پس وڅکئ (سزا خپله) چې له سره نه زیاتوو مونږ پر تاسې پر ته له عذابه (د پاسه په بل عذاب باندې).

تفسیر: یعنې همغسې چې تاسې په تکذیب او انکار کې تېرې او وړاندې تګ کوئ؛ نو که بې واکه مرګ او مړینه تاسې ته درپېښه شي؛ تل به مو همدا وړاندې تګ وي، اوس د لویو ربړو خوند وڅکئ !، مونږ به هم ستاسې عذاب داسې زیاتوو چې هیڅ تخفیف او سپکتیا به په کې نه وي، او د یوه عذاب د پاسه به بل عذاب درکاوه کیږي، او دغه آیت ډېر سخت دی لـه آیتونو د قرآنه په حق د دوزخیانو کې، اوس الله تعالی أعظم برهانُه وأعلی شأنُه د مؤمنانو کرامت داسې بیان فرمایي:

إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴿٣١﴾ حَدَآئِقَ وَأَعْنَٰبًا ﴿٣٢﴾ وَكَوَاعِبَ أَتْرَابًا ﴿٣٣﴾

بېشکه خاص متقیانو ته (په آخرت کې) ځای د خلاصي بري کامیابۍ دی. باغونه (د مېوې) او د انګورو (ونې) دي. او پېغلې انارتیونې همځولې دي.

تفسیر: یعنې داسې انارتیونې پیمخې پېغلې چې دوی د خپل پېغلتوب وروستني مېچ ته رسېدلې وي، او ګردې په یوه عمر او یوه ونه وي؛ متقیانو ته ورعنایت کیږي.

وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴿٣٤﴾

او (متقیانو ته په جنّت کې د شراب طهور) پیالې ډکې تر خنډو (غاړو) دي.

تفسیر: یعنې د پاکو خوږوبي (شراب طهور) په خنډو اوښتي جامونه به پر متقیانو مؤمنانو ورڅښولی کیږي.

لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّٰبًا ﴿٣٥﴾

نه اوري په دغه (جنّت کې متّقیان) لغو چټي (بېکاره) خبرې او نه دروغ.

تفسیر: یعنې په جنّت کې چټي خبرې اترې نه وي، او ملنډې نه پکښې اورېدلی کیږي، درواغ او فرېب او درغلي په که نه وي، نه ځوک له چا سره جنګ جنجال کوي، ځکه چې هلته د جګړې او شخړې هیڅ یوه پېښه نه وي، او نه څه ضرورت ورته واقع کیږي.

جَزَآءً مِّن رَّبِّكَ عَطَآءً حِسَابًا ﴿۳۶﴾

(جزاء به ورکوله شي متّقیانو ته) جزاء ورکول له ربه ستا نه عطاء ډېره (په حساب د اعمالو سره).

تفسیر: یعنې د یوې یوې ذرې شمېر به کیږي، او ښه بدل او کافي اجر یې د دوی د رب او پالونکي له جانبه ورکاوه کیږي، هسې رب أکرم شأنُه وأعظم برهانُه.

رَّبِّ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمَٰنِ لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا ﴿۳۷﴾

چې رب د اسمانونو او (رب د) ځمکې او (رب د) هغو شیونو دی چې په منځ د دغو دواړو (ځمکې او اسمان) کې دي، ډېر مهربان دی، نه به مالکان کیږي (د شفاعت، نه به توانیږي خلق) له دغه (الله) سره د خبرو کولو.

تفسیر: یعنې نه به قادرېږي هیڅوک چې خبرې وکړي له الله سره له وېرې، یا نه به مالکان کیږي د شفاعت لپاره د هر چا مګر خو په اذن د الله تعالی، او سره له دومره لطف، مرحمت د هغه الله تعالی عظمت، جلال او لورینه داسې ده چې هیڅوک د الله تعالی په مخ کې خبرې نشي کولی، او شونډې نشي خوځولی.

يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَٰٓئِكَةُ صَفًّا

په هغې ورځې (د قیامت) کې چې ودرېږي روح او د ملائکو صفونه صفونه.

تفسیر: له روح څخه مقصد ګرد ساکنبان دي، یا به له هغه څخه (روح القدس) مراد وي، چې جبریل علیه السلام دی.

لَّا يَتَكَلَّمُونَ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَٰنُ وَقَالَ صَوَابًا ﴿۳۸﴾

نه به کوي خبرې (هیڅوک له وېرې په باب د شفاعت کې مګر) پرته له هغه چې اذن حکم وکړي ده ته رحمان (د خبرو یا د شفاعت)، او ویلی یې وي صواب ښه خبره (په دنیا کې چې لا اله الا الله ده).

تفسیر: یعنې په هغه دربار کې هر څوک هر څه چې وایي؛ د هغه الله تعالی په اذن او حکم اشاره یې وایي، او څه چې وایي؛ همداسې خبرې کوي چې د ویلو او کولو وړ او خورا (درستې) او معقولې وي، لکه د کوم غیر مستحق سپارښت نه کوي، په هغه ورځ کې او د الله تعالی په حضور کې به د سپارښت وړ یواځې هغه څوک کېدی شي؛ چې په دنیا کې له رښتینو او جوتو خبرو څخه زیاتره رښتیا او جوتې خبرې یې له خولې څخه وتلې وي، او د «لا اله الا الله» پاکه کلمه یې ویلې وي، یعنې مسلمان وي نه کافر، ولې چې نه کوي شفاعت مګر خو د مستحق مؤمن، ای الله تعالی ! تل دا کلمه ځمونږ په ژبو جاري لره !.

ذَٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَن شَآءَ اتَّخَذَ إِلَىٰ رَبِّهِ مَآبًا ﴿۳۹﴾

دا هغه ورځ ده حقه، پس هر هغه چې اراده وکړي؛ نیسي طرف د رب خپل ته مرجع.

تفسیر: یعنې هغه د قیامت ورځ خامخا راتلونکې ده، اوس هر هغه څوک چې خپله ښه او بهتري غواړي؛ ښایي چې د هغې ورځې لپاره ځان تیار کړي، او په زړه پورې تیاری ورته ونیسي !.

إِنَّآ أَنذَرۡنَٰكُمۡ عَذَابٗا قَرِيبٗا يَوۡمَ يَنظُرُ ٱلۡمَرۡءُ مَا قَدَّمَتۡ يَدَاهُ وَيَقُولُ ٱلۡكَافِرُ يَٰلَيۡتَنِي كُنتُ
تُرَٰبَۢا ﴿٤٠﴾

بېشکه مونږ چې یو ویروو مونږ تاسې (ای کُفّارو) له یوه عذاب راتلونکي نژدې څخه (چې عذاب د آخرت دی)، هغه ورځ چې وبه ویني هر سړی هر هغه څه چې په مخ کې لېږلي دي دواړو لاسو د ده، (یعنې ښه او بد، وړاندنی وروستنی چارې او اعمال یې وروړاندې کېړي)، او وبه وایي کافر (په ورځ د قیامت کې): کاشکې چې وی زه خاورې.

تفسیر: یعنې کاشکې زه خاورې وی !، په دنیا کې چې هیڅ کله پیدا شوی نه وی !، ځکه چې د همدغه پیدایښت له سببه د حساب او کتاب په عذاب اخته شوی یم.

تمّت سورة النبأ بفضل الله تعالى ومنّه و کرمه.



# سُورَةُ النَّازِعَاتِ

«د (النازعات) سورت مکّي دی، (۴۶) آیته (۲) رکوع لري، په تلاوت کې (۷۹)، په نزول کې (۸۱) سورت دی، وروسته د (النّبأ) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالنَّازِعَاتِ غَرْقًا ﴿١﴾ وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا ﴿٢﴾

قسم دی (په ملائکو) سخت وښکوونکيو (ارواحو د کفّارو لره) سخت وښکل. (او قسم دی) په ملائکو اسان وښکوونکيو (ارواحو د مؤمنانو لره اسان وښکل).

تفسير: يعنې قسم دی په هغو پرښتو باندې چې د کافرانو په رګونو کې ورننوځي، او د هغوی ارواح په راښکلو سره له سرونو د ګوتو او نوکونو نه په ډېره سختۍ سره وباسي، يا قسم دی په ستوريو ځغلېدونکيو باندې له مشرق نه مغرب ته.

﴿وَالنَّاشِطَاتِ نَشْطًا﴾«او قسم دی په ملائکو اسان وښکوونکيو ارواحو د مؤمنانو لره اسان وښکل»، يعنې هغه پرښتې چې له مؤمنانو څخه د روح غوټه پرانيځي، او بيا دوی په ډېرې خوښۍ سره د بره په لوري ځغلي، خو په ياد يې ولرئ چې دا ذکر د روح دی، او د بدن نه دی، لنډه يې دا چې ښه سړی په ډېرې خوښۍ سره د بره په لوري ور ځغلي، او بد سړی ترې تښتي، نو يې په راښکودلو سره بېرته بيايي، يا قسم دی په هغو ستوريو باندې چې وځي له يوه برجه بل برج ته.

وَالسَّابِحَاتِ سَبْحًا ﴿٣﴾ فَالسَّابِقَاتِ سَبْقًا ﴿٤﴾

او قسم دی په تېزو غوټه وهونکيو (ملائکو په تعميل د احکام الله) تېز غوټه وهل. نو قسم دی په وړاندې کېدونکيو (ملائکو) باندې وړاندې کېدل (په ارواحو د مؤمنانو جنّت ته).

تفسير: يعنې هغه پرښتې چې روح له ځان سره اخلي، او د ځمکې څخه د اسمان په لوري په داسې سرعت او سهولت سره ځغلي، لکه چې بې له کوم تکليفه په اوبو باندې ګړندی لامبو وهي، بيا نو د دې ارواحو په باره کې هر هغه امر چې د الله تعالی له خوا کيږي؛ د هغه په ځای راوړلو ته په ډېر شوق، او تلوار سره ورځغلي، يا قسم دی په تسبيح ويونکو باندې په تسبيح ويلو سره، يا په هغو ستوريو باندې قسم دی چې وړاندې کيږي يو له بل نه په تللو راختلو او نورو.

فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْرًا ﴿٥﴾

پس (قسم دی) په تدبير جوړوونکيو (ملائکو) د حکم د الله (په دنيوي چارو کې، جواب د قسم دا دی چې خامخا به راپورته کړی شئ تاسې لپاره د حساب او کتاب).

تفسير: يعنې وروسته له هغه د دې ارواحو په نسبت کې د ثواب حکم کيږي که د عقاب؛ د دې دواړو احکامو تدبير او انتظام په همدغو پرښتو پورې اړه (تعلّق) لري، او د هر حکم په کولو سره مشغوليږي، يا به مطلقاً له هغو پرښتو څخه مراد وي چې د عالم تکوين په انتظام او تدبير باندې مسلّطې دي.

يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ﴿٦﴾ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ﴿٧﴾

هغه ورځ چې ولړځيږي لړځېدونکې (چې اوله شپېلۍ ده). پس راځي پس له دې نه هغه وروسته راتلونکې (چې ثاني نفخه ده).

**تفسير:** يعنې د قيامت په ورځ کې به ولړځيږي غرونه او ځمکه له اول ځلي شپېلۍ او صور له پوکلو څخه، شاه صاحب ليکي چې پرله پسې ځمکه لړځيږي، ډېرو مفسّرينو له «رادفة» څخه مراد دويم صور او شپېلۍ اخيستې ده، والله تعالى أعلم.

قُلُوبٌ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ ﴿٨﴾ أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ﴿٩﴾

زړونه (د منکرانو د بعث) په هغې ورځې کې به بې قراره رپېدونکي وپرېدونکي وي. سترګې د هغوى به سپکې ذليلې ښکته وي (له وېرې).

**تفسير:** يعنې د پرېشانۍ او ويرېدلو له سببه به زړونه رپيږي، او ځانونه به لړځيږي، د دوى سترګې به خوارې او سپکې او ښکته وي، او د ذلّت او ندامت او پښېمانۍ ګردې نښې به په هغوى کې له لرې ښکاري.

يَقُولُونَ أَإِنَّا لَمَرْدُودُونَ فِي الْحَافِرَةِ ﴿١٠﴾ أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ﴿١١﴾ قَالُوا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ ﴿١٢﴾

وايي به (دغه منکران د بعث تمسخُرًا) آيا مونږ به بيا وګرځولی شو په ړومبي حالت (بيا ژوندي کيږو؟). آيا کله چې وګرځو مونږ هډوکي زاړه رېژېدونکي (نو بيا به هم ژوندي کيږو؟). وويل (منکرانو تمسخُرًا) دغه (ګرځېدل ځمونږ ژوندون ته) په هغه وخت کې ګرځېدل نقصانمن زيانمن دي.

**تفسير:** يعنې د هديرې په ژوره کې له خښېدلو څخه وروسته به بيا څرنګه مونږ ژر تر ژره بېرته ژوندي کيږو؟ مونږ خو په دې خبرې نشو پوهېدی چې په رژېدلي زاړه هډوکي کې به بيا څنګه روح ننوځي؟ که داسې کومه پېښه وشي؛ نو بيا به ژوندي کېدل ډېر ضرر لرونکي او زيانمن وي، ولې چې مونږ هغه ژوندون لره څه تياری نه دی کړی، او هيڅ شی او سامان نه ورته لرو، دا خبرې دوى په ملنډې او مسخرو سره کوي، نو بيا فرمايي الله أكرم شأنُه وأعظم برهانُهُ چې:

فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَاحِدَةٌ ﴿١٣﴾ فَإِذَا هُم بِالسَّاهِرَةِ ﴿١٤﴾

پس بېشکه دا (ثاني نفخه) خو پوکل يو دي (ډېر اسان چې پرې ژوندي کيږي ګرد مخلوقات). پس ناڅاپه وي به دغه (خلق ټول) په مخ د ځمکې (پس له مرګه).

**تفسير:** ځينې د «ساهرة» مصداق شام بولي، او ځينې يې د دوزخ نوم ګڼي، يعنې منکر خلق دا خبره ډېره سخته ګڼي، او حال دا دی چې داسې چارې پاک الله تعالى ته ډېرې آسانې دي، تر دې چې د يوې سلګۍ وهلو په مېچ دا ګردې چارې کيدونکې دي، يعنې د يوې چغې او د صور په پوکلو سره بې له ډېله ګرد پخواني او وروستني مړي له ځمکې څخه د حشر په ډګر کې سره ټوليږي.

هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسَىٰ ﴿١٥﴾

آيا راغلې ده تاته (اى محمده ! بلکه بېشکه رسېدلې ده تاته اى محمده !) خبره د موسى.

تفسير: دا قصه په څو څو ځايونو کې په تفصيل سره ذکر شوې ده، يعنې په تحقيق راغلې ده تاته خبره د دغه موسی.

إِذْ نَادَىٰهُ رَبُّهُۥ بِٱلْوَادِ ٱلْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٦﴾

کله چې ور غږ کړ دغه (موسی) ته رب د ده په پاکه کنده ميدان د طوی کې.

تفسير: يعنې د طور له غره سره نژدې، او موسی ته الله أکرم شأنُهُ وأعظم برهانُهُ دغسې امر وفرمايه چې:

ٱذْهَبْ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ إِنَّهُۥ طَغَىٰ ﴿١٧﴾ فَقُلْ هَل لَّكَ إِلَىٰٓ أَن تَزَكَّىٰ ﴿١٨﴾ وَأَهْدِيَكَ إِلَىٰ رَبِّكَ فَتَخْشَىٰ ﴿١٩﴾

لاړ شه (په رسالت ځما) طرف د فرعون ته چې بېشکه ده سر غړولی (تجاوز يې کړی) دی (د الله تعالی له احکامو). نو ووايه ورته: آيا مينه لرې ته په طرف د دې چې پاک شې (له شرک او معاصي نه)؟. او (رغبت لرې دېته چې) لاره دروښيم تاته طرف د رب ستا ته؛ پس ووېرېږې ته (له عذابه).

تفسير: يعنې که ته خپل ښه والی او اصلاح غواړې؛ نو زه د الله تعالی په امر ستا اصلاح کولی شم، او داسې لاره درښيم چې پر هغې باندې له تللو څخه ستا په زړه کې د الله تعالی وېره او د هغه کامل معرفت ټينګ شي، ځکه چې د وېرې شته والی بې له پوره معرفت متصوّر نه دی، ښکاره شوه چې د موسی عليه السلام له بعثت څخه مقصد د فرعون اصلاح هم وه، او يواځې د بني اسرائيلو نجات او ژغورنه له قيده نه وه، پس موسی عليه السلام فرعون ته ورغی، او هغه ترې معجزه وغوښته.

فَأَرَىٰهُ ٱلْءَايَةَ ٱلْكُبْرَىٰ ﴿٢٠﴾

پس وښودله (موسی) دغه (فرعون ته) معجزه لويه.

تفسير: يعنې هلته رسېدلی د الله تعالی پيغام يې ورساوه، او موسی فرعون ته د حجّت د تمامولو لپاره له ګردو څخه لويه معجزه له همسا ځنې د ښامار جوړول ورو ښودل.

فَكَذَّبَ وَعَصَىٰ ﴿٢١﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَىٰ ﴿٢٢﴾

پس تکذيب وکړ (فرعون د موسی) او ويې نه مانه. بيا يې شا کړه (له ايمانه) لاړ په ډېره بيړه سره (په فساد پسې).

تفسير: يعنې هغه ملعون فرعون نه وو منونکی، او په دې فکر کې ولګېد چې ډېر سړي سره راټول کړي او کوډګران ولټوي، او پر دې باندې يې وګماري چې د موسی عليه السّلام د معجزاتو مقابله په سحر سره وکړي.

فَحَشَرَ فَنَادَىٰ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ أَنَا۠ رَبُّكُمُ ٱلْأَعْلَىٰ ﴿٢٤﴾

پس (فرعون ګرد ساحران) راټول کړل، پس غږ يې وکړ. پس ووېل (فرعون داسې چې) زه رب پالونکی ستاسې يم ډېر لوی لوړ.

تفسير: يعنې له ګردو څخه لوی رب خو زه يم، نو دا موسی عليه السلام د کوم رب رسول او استاځی دی؟ معاذ الله.

فَأَخَذَهُ اللَّهُ نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ ﴿٢٥﴾

پس ونیو دغه (فرعون لره) الله په عذاب د آخرت او د دنیا.

**تفسیر:** یعنې دلته د دنیا په اوبو کې ډوب شو، او هلته د عقبی په اور کې سوځي.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَن يَخْشَىٰ ﴿٢٦﴾

بېشکه په دغه (ډوبېدلو د ده او سوځېدو د ده) کې خامخا عبرت دی هغه چا لره چې ویرېږي (له الله نه).

**تفسیر:** په دې قصې کې ډېرې خبرې د سنجولو (فکر کولو) او عبرت او نصیحت اخیستلو لپاره شته، په دې شرط چې د سړي په زړه کې لږ څه د الله تعالی وېره وي.

(ربط): د موسی علیه السلام او د فرعون قصه په منځ کې استطرادًا راغلې ده، وروسته له دې نه بیا هغه مضمون د قیامت په لوري اوړي، لکه چې اوس د قیامت منکرانو ته الله أکرم شأنُهُ وأعظم برهانهُ داسې فرمايي:

ءَأَنتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ ۚ بَنَاهَا ﴿٢٧﴾

آیا تاسې ډېر سخت یئ د پیدایښت لامله که اسمان؟ جوړ کړی دی (الله) دغه (اسمان).

**تفسیر:** یعنې د تاسې پیدا کول هغه هم وروسته له دې چې یو ځلې پیدا شوي یئ له اسمانونو څخه ګران دي؟ کله چې تاسې د داسې لوی اسمان خالق او مالك الله تعالی پېژنئ؛ بیا نو پخپلو بیا پیدا کېدلو کې ولې تردّد او شبهه لرئ؟ جوړ کړی دی الله اسمان.

رَفَعَ سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا ﴿٢٨﴾ وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا ﴿٢٩﴾

پورته کړی دی (الله) چت لوړوالی د هغه (اسمان) نو سم صاف بې عیبه یې کړ. او توره تیاره یې کړه شپه د دغه (اسمان)، او راویې ایسته ورځ رڼا د دغه (اسمان).

**تفسیر:** یعنې په اسمان کې فکر ووهئ! چې څومره زیات هسك او اوچت دی؟ څرنګه کلك او مضبوط دی؟ په څه اندازه منظم مرتب بې عیبه او بې نقصانه دی؟ څنګه صاف او هوار دی؟ څه ډول انتظام او تدوین او ترتیب د هغه په موجوداتو او مربوطاتو کې شته؟ د هغه له لمر او سپوږمۍ او ستوریو څخه څومره ګټې اخلئ؟ او په څه اندازه د اوقاتو او اطرافو په پېژندلو او نورو شیانو کې ورځنۍ ګټور کېږئ، د اسمان ننداري ته د ورځې له خوا او د شپې له خوا بېل بېل ځیر شئ چې څرنګه درښکاري؟ او د تعجّب او د حیرت وړ دربرېښي؟.

وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا ﴿٣٠﴾

او ځمکه وروسته له دغه (پیدایښت د اسمان) صافه وغوړوله (الله) دا (ځمکه).

**تفسیر:** یعنې د ځمکې او د اسمان له منځه کوم یو وړاندې او کوم یو وروسته جوړ شوی دی؟ د دې په نسبت وړاندې له دې نه په بل کوم ځای کې څه خبرې شوي دي، ځمونږ د دغه تفسیر د «حم السجدة» سورت وګورئ!.

اوس الله أعلی شأنُهُ وأعظمَ برهانُهُ د ځمکې د غوړولو لږ څه نور تشریح داسې فرمايي:

أَخْرَجَ مِنْهَا مَآءَهَا وَمَرْعٰهَا ﴿٣١﴾

را ایستلي دي (الله) له دغې (ځمکې) څخه اوبه د دې، او واښه ورشو د دې.

**تفسیر:** یعنې الله تعالی سیندونه او چینې بیولې دي، او د هغو اوبو په وسیله یې قسم قسم نباتات، واښه پیدا کړي دي.

وَالْجِبَالَ أَرْسٰهَا ﴿٣٢﴾

او غرونه (په مخ د ځمکې) ودرول ثابت محکم کړل (الله) هغه (غرونه).

**تفسیر:** چې له خپل ځای څخه نه خوځیږي، او د ځمکې مخصوص اضطرابات او خوځېدل یې هم ورک کړي دي، او دغه ثبات د ځمکې؛ او جریان د اوبو پرې، او ایستل د محصولاتو ترې؛ کړي دي الله أکرم شأنُهُ وأعظم برهانُه.

مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعٰمِكُمْ ﴿٣٣﴾

لپاره د نفعې ستاسې او لپاره د نفعې د چارپایانو ستاسې (ای بندګانو ځما !).

**تفسیر:** یعنې که دا انتظام نه وي؛ نو ستاسې او ستاسې د حیواناتو چارې به څرنګه پوره کېدې؟ د دې ګردو شیانو له پیدا کولو څخه ستاسې د اړتیاوو پوره کول، راحت او هوسایي رسول او نورې ګټې مراد دي، نو ښایي چې تاسو د هغه حقیقي منعم شکر اداء کړئ !.

فَإِذَا جَآءَتِ الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى ﴿٣٤﴾ يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنْسٰنُ مَا سَعٰى ﴿٣٥﴾ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ لِمَن يَرٰى ﴿٣٦﴾

پس کله چې راشي آفت بلاء لویه (قیامت یا وخت د ورتګ د کفّارو جحیم ته، او د مؤمنانو نعیم ته؛). په هغه ورځ به یاد کړي انسان هغه څه چې کړي یې وي (که خیر وي یا شر په دنیا کې). او څرګند (ښکاره) به کړی شي دوزخ هر هغه چاته چېویني یې (د لیدلو خاوند وي).

**تفسیر:** یعنې دوزخ به داسې په عام منظر کې راویست شي، چې هر لیدونکی به یې ویني، او هیڅ یو غر او یوه پرده به په منځ کې نه وي.

فَأَمَّا مَن طَغٰى ﴿٣٧﴾ وَءَاثَرَ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا ﴿٣٨﴾

پس هر هغه چې سرکشي کړې وي (په کفر سره) او غوره کړی یې وي ژوندون لږ خسیس (پر آخرت باندې).

**تفسیر:** یعنې دنیا ته پر آخرت باندې ترجیح ورکوي، او هغه ښه ګڼي او غوره کوي یې، او آخرت بالکل هیروي؛

فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوٰى ﴿٣٩﴾ وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِۦ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوٰى ﴿٤٠﴾ فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوٰى ﴿٤١﴾

پس بېشکه دوزخ همدا (دوزخ د ده) د هستوګنې ځای دی. او هر هغه څوک چې ویریږي له ودرېدلو (په مخ د) رب خپل، او منع کړی یې وي نفس خپل له هوا فاحشاتو بدو غوښتنو څخه؛ نو بېشکه جنّت همدا (د ده) د هستوګنې ځای دی.

**تفسیر:** یعنې هغه څوک چې د دې خبرې لامله ویرېږي چې زه یوه ورځ د الله تعالی په مخ کې د حساب او کتاب لپاره ودرېږم، او د دې وېرې لامله یې د خپل نفس په خواهش ناکاره کار ونه کړ، او د الله تعالی ګرد احکام یې ومنل، او له نواهیو څخه یې ځان وژغوره، نو د هغه ځای خامخا په جنّت کې دی.

يَسْـَٔلُونَكَ عَنِ السَّاعَةِ أَيَّانَ مُرْسٰهَا ﴿۴۲﴾

پوښتنه کوي له تا څخه (ای محمده ! منکران) د قیامت، چې کله به وي وقوع د هغه (قیامت).

فِيمَ أَنتَ مِن ذِكْرٰهَآ ﴿۴۳﴾ إِلٰى رَبِّكَ مُنتَهٰهَآ ﴿۴۴﴾

په څه کې یې ته (ستا څه کار دی) له ذکره پوهېدلو څخه د هغه (قیامت څخه، بلکه تا لره علم نشته). خاص رب ستا ته ده انتهاء د دغه (علم په قیامت چې کله به وي؟).

**تفسیر:** یعنی د هغه پوره ورښول ستا کار نه دي که هر څومره پوښتنې وشي هیڅا ته دا پټه خبره ښکاره کیدونکې نه ده او ددې کار پوره علم الله تعالی ته معلوم دي.

إِنَّمَآ أَنتَ مُنذِرُ مَن يَخْشٰهَا ﴿۴۵﴾

بېشکه ته (ای محمّده) وېروونکی یې د هغه چا چې ویرېږي له (عذاب د) هغه (قیامت) نه.

**تفسیر:** یعنې ای محمده ! ستا کار د قیامت د خبرو اورول او د خلقو وېرول دي، ګواکې ستا د ویرولو د نتیجې اعتبار یواځې د هغه کسانو په حق کې دی چې له هغو څخه د ګټې اخیستلو امید وي، او اهلیت یې ولري، که نه نا اهل سړی له انجامه غافل شوی، همداسې په فضولو بحثونو کې لوېږي، چې قیامت به کله او په کوم تاریخ کې او په کوم کال کې واقع کیږي؟.

كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوٓا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحٰهَا ﴿۴۶﴾

ګواکې دغه (منکران) په هغې ورځې کې چې ویني دغه (قیامت داسې به ګڼې) لکه چې نه یې وو کړی ځنډ (په دنیا یا قبورو خپلو کې) مګر (په قدر د) ماښام آخر د ورځې، یا په قدر د څاښت.

**تفسیر:** یعنې اوس خو شور لګوي، چې د قیامت په راتلو کې ولې دومره ځنډ او ډیل وشو؟ ولې ژر نه راځي؟ مګر په هغه وخت کې به دوی ته څرګنده شي چې قیامت خورا ژر راغلی، او هیڅ معطّلي او ډیل په کې پېښ شوي نه دي.

تمّت سورة النازعات بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ عَبَسَ

«د (عبس) سورت مکي دی، (۴۲) آیته (۱) رکوع لري، په تلاوت کې (۸۰) په نزول کې (۲۴) سورت دی، وروسته د (النّجم) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

رسول أکرم صلی الله تعالی علیه وسلم د قریشو له ځینو غټانو سره د اسلام په نسبت څه خبرې کولې، او دوی یې پوهول، په دې منځ کې یو ړوند مسلمان عبد الله بن أمّ مکتوم رضي الله تعالی عنه د دوی په خدمت ور حاضر شو، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم توجّه یې ځانته ور اړوله چې: «یا رسول الله ! د دې آیت مراد څه دی؟ ماته له هغه څه یو څه راوښیئ همغسې چې الله تعالی تاته درښوولي دي !»، هغه د دې ړانده له دې بې وخته پوښتنې څخه لږ خپه شو، او ښایي چې د ده مبارک په زړه کې داسې کومه خبره هم تېره شوي وي، چې زه اوس په مهمّو خبرو کې مشغول او بوخت یم، که د قریشو دا غټان په ښه ډول وپوهولی شم؛ ګوندې چې دوی د اسلام په لوري راشي، او د دوی له سببه نور ډېر کسان هم مسلمانان شي، او حال دا دی چې عبد الله بن أمّ مکتوم مسلمان دی، او د هغه لپاره نور ډېر وختونه هم شته چې په هغو کې خپلې داسې پوښتنې وکړي او تعلیم حاصل کړي، هغه نه ګوري چې که زه له دغو بااثرو او بارسوخو خلقو څخه سترګې واړوم، او ده ته التفات وکړم؛ نو ځما دا وضعیت به په هغو باندې لږ شاق تېر شي، او شاید چې هغوی به بیا ځما خبرو ته لکه اوس غوږ نه نیسي، ځکه یې دا چې دوی منقبض شول، او د انقباض نښې د دوی په وچولي (تندي) کې ښکاره شوې، په دې خبره باندې دا آیات نازل شول، په روایاتو کې راغلي دي چې وروسته له دې کله به چې دغه ړوند صحابي د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخ کې راتللو؛ نو دوی به د ده زیات تعظیم کاوه، او ورته ویل به یې: «مرحبًا بمن عاتبني فیه ربي».

عَبَسَ وَتَوَلّٰىٓ ۝١ أَنْ جَآءَهُ الْأَعْمٰى ۝٢

وچولی (تندی) تریو کړ (محمد) او مخ یې وګرځاوه. د دې لامله چې راغی ده ته ړوند.

تفسیر: یعني د پیغمبر په وچولي (تندي) کې د یوه ړانده له راتللو څخه ګونځې ولوېدې، او خپل مخ یې ترې واړاوه، او ښایي چې ده ته د دې ړانده د معذورۍ د مات زړه او د طلب صادق لحاظ کول ډېر په کار وو.

وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكّٰىٓ ۝٣ أَوْ يَذَّكَّرُ فَتَنْفَعَهُ الذِّكْرٰى ۝٤

او څه شي پوه کړی یې ته (ای محمده له احواله د دې ړانده) ښایي چې هغه (ړوند) به پاک شي (په تعلیم د تا له معاصیو له بدو اخلاقو). یا به ذکر پند واخلي پس نفع به ورسوي ده ته ذکر پند (د تا).

**تفسیر:** یعنې هغه ړوند طالب صادق وه، تاسې ته څه معلومه ده چې ستاسې د توجّه له وجې به د هغه حال زیات اصلاح کېده، او د هغه نفس به لا پاکېده، یا به ستاسې کومې خبرې د دوی په غوږونو کې ځای نیوه، ښایي چې ستاسې په اخلاص پوهولو څخه به هغه په یوه شي پوهېده، او بله ورځ به ورته په کار ورتله.

اَمَّا مَنِ اسْتَغْنٰى ﴿۵﴾ فَاَنْتَ لَهٗ تَصَدّٰى ﴿۶﴾ وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى ﴿۷﴾

او هر هغه څوک چې استغناء یې کړې ده (پروا نه کوي د هدایت). نو ته هغه ته قصد کوې (د هغه د مسلمانۍ په فکر کې یې). او نشته پر تا باندې هیڅ الزام چې هغه پاک نشي (په اسلام سره).

**تفسیر:** یعنې هغه خلق چې د خپلې مغرورۍ او متکبّرۍ او لویۍ په سبب د حق پروا نه لري، او لویي هغوی ته اجازه نه ورکوي چې الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ته سر ښکته کړي؛ ته ولې په هغوی پسې ګرځې، او غواړې چې هرومرو هغوی مسلمانان شي، او د هغوی د اسلام اثر په نورو هم ولوېږي، حال دا دی چې د الله تعالی له پلوه پر تاسې باندې هیڅ یو الزام نشته، چې دا متکبر مغرور او لویي خوښوونکی سړی ولې په لاره نه دی راغلی؟ په تاسې دا فرض وو چې هغوی ته دعوت او تبلیغ وکړئ، او دا کار تاسې وکړ، زیات له دې نه د دې بې پروا متکبّرانو په فکر کې په دې اندازې لوېدل په کار نه دي، چې رښتیني طالبان او مخلص ایمانداران ستاسې له توجّه څخه بې برخې پاتې شي.

وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ يَسْعٰى ﴿۸﴾ وَهُوَ يَخْشٰى ﴿۹﴾

او هر هغه څوک چې راشي تاته په تلوار سره (لپاره د طلب د خیر). حال دا چې دی ویرېږي (له الله نه).

**تفسیر:** یعنې دغه د خیر طالب عبد الله بن أمّ مکتوم رضي الله تعالی عنه له الله جلّ جلاله څخه ویرېږي.

فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿۱۰﴾

پس ته (ای محمده) له هغه (ړوند طالب الخیر څخه) مخ ګرځوې (مشغولېږې، تغافل کوې، له کفّارو سره خبرې کوې).

**تفسیر:** حال دا دی چې له همداسې سړي څخه ګټه واخلئ، او د اسلام لپاره کار وکړئ، وایي چې همدې ړانده صحابي ابن أمّ مکتوم ځغره واغوسته او د اسلام بیرغ یې په اوږه کېښوده، او د قادسیې په جهاد کې شریک شو، تر دې چې په جهاد کې یې شهادت وموند، رضي الله تعالی عنه وأرضاه.

كَلَّآ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿۱۱﴾ فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ﴿۱۲﴾

مه کوه بیا داسې (ځکه چې) بېشکه دا (سورت) یو تذکره پند دی (له جانبه د الله ټولو ته). نو هغه څوک چې غواړي ودې مني دغه (پند د قرآن).

**تفسیر:** یعنې که متکبّر اغنیاء قرآنکریم ونه لولي، او د هغه پند ته غوږ کېنښږدي؛ نو ځانونو ته ضرر رسوي، ځکه چې قرآن مجید د هغو څه پروا نه لري، نه تاسې ته ښایي چې دومره زیات د هغوی فکر وکړئ، پر تاسې باندې دومره دي چې خپل عمومي تبلیغ او پند ووایئ، که څوک خپله ګټه غواړي؛ نو ځان دې پرې پوه کړي، او ودې لولي، او عمل دې پرې وکړي.

فِي صُحُفٍ مُّكَرَّمَةٍ ﴿١٣﴾ مَّرْفُوعَةٍ مُّطَهَّرَةٍ ﴿١٤﴾

(دغه قرآني آيات ليکلی شوي دي) په پاڼو عزتناکو (عند الله په لوح محفوظ کې). چې پورته دي په قدر او عظمت کې، پاک کړی شوي دي (له رسېدو د شياطينو او له نورو ټولو عيبونو نه).

تفسير: يعني آيا د دې مغرور او لويي خوښوونکي له منلو څخه د قرآن عزّت او وقعت زياتيږي؟ قرآن مجيد خو هغه پاک کتاب دی چې آيتونه يې په اسمان کې نهايت معزّز او لويه مرتبه لري، او په پاکو پاڼو کې ليکلی شوي دي، او په ځمکه کې هم اخلاصمن مسلمانان د هغه خورا زيات عزّت او احترام ساتي، او په ډېر تقديس او تطهير يې په لوړو ښو ځايونو کې ږدي.

بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ﴿١٥﴾ كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴿١٦﴾

په لاسونو د (ملائکو). ليکونکيو عزتمنو نېکو.

تفسير: يعني هلته يې پرښتې ليکي، او سم له هغه سره وحي راځي، چې هغوی د قرآن کريم د هر راز تزييد، تنقيص، تحريف او تبديل څخه ځانونه ژغوري، او هغه تل همغسې پاک ساتي.

قُتِلَ الْإِنسَانُ مَا أَكْفَرَهُ ﴿١٧﴾

لعنت کړی شوی دی په (کافر) انسان، چې څه شي کافر کړی دی (باعث کړی يې دی په کفر).

تفسير: يعني د قرآنکريم غوندې د لوی نعمت هيڅ قدر او عزّت يې ونه پېژنده، او د الله تعالی حق يې پر ځای نه کړ، او له دې نه يې هيڅ انديښنه ونه کړه چې:

مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ ﴿١٨﴾ مِن نُّطْفَةٍ خَلَقَهُ فَقَدَّرَهُ ﴿١٩﴾ ثُمَّ السَّبِيلَ يَسَّرَهُ ﴿٢٠﴾

له څه شي څخه پيدا کړی دی (الله) هغه (انسان؟ فرمايي الله) له نطفې (قطرې د مني) څخه پيدا کړی دی (الله) دغه (انسان) پس په اندازه يې کړ ده لره (هيئت او صورت، اندامونه د مور په نس کې). بيا يې لاره ور اسانه کړې ده ده ته (لاره د وتو د ده له ګېډې د موره).

تفسير: يعني که لږ څه دغه انسان خپل اصل ته فکر وکړي، چې دی له څه شي څخه پيدا شوی دی؟ د يوه ناڅيز او بې قدر څاڅکي له اوبو څخه پيدا شوی دی، چې هيڅ حس، شعور، حسن، جمال، عقل، کمال، ادراک، واک او نور په کې نه وو، او دا ګرد شيان الله تعالی له خپلې مهربانۍ څخه وربښلي دي، چې اوس يې عمومي حقيقت داسې ښکاري، آيا ده ته دا لويي، غرور څه مناسبت لري؟.

الله جل جلاله ده ته لاسونه، پښې، او نور ګرد اعضاء او قواوې له هم هغه يوه څاڅکي اوبو څخه د مور په نس کې د «أحسن الخالقين» توب په اقتضاء په يوه ځانته شکل او خاص اسلوب او اندازه ورجوړ کړي، او هيڅ يو شی يې نامناسب او خراب او خلاف له حکمت نه دي ورروغ کړي، بيا يې لار ور اسانه کړې ده ته، يعني د ايمان او د کفر، د ښو او د بدو، پوهـه يې ورکړه، يا دا چې د مور له نس څخه يې په اسانی سره راوويست.

ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ ﴿۲۱﴾

بیا (الله) مړ کړ هغه (انسان لره) نو په قبر کې یې کېښود ده لره.

**تفسیر:** یعنې وروسته له مړینې څخه د هغه مړي د خښولو هدایت یې ورکړ، تر څو چې د ژوندیو په نزد بې حرمته نه شي.

ثُمَّ اِذَا شَآءَ اَنْشَرَهٗ ﴿۲۲﴾

بیا هر کله چې اراده وفرمایي (الله د بیا ژوندیتوب؛ نو) ژوندی کوي ده لره (لپاره د جزاء)

**تفسیر:** یعنې هغه الله تعالی چې یو ځلې انسان ته حیات او بیا ممات ورکوي او خښوي یې؛ اختیار لري چې هر وخت یې وغواړي بیا یې ژوندی کړي، او له قبره یې وباسي، ځکه چې اوس هم هیڅا د هغه قدرت نه دی سلب کړی.

كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَآ اَمَرَهٗ ﴿۲۳﴾

بیخي نه دی کړی (کافر) هغه شی چې امر حکم کړی دی ده ته (دغه الله د هغه).

**تفسیر:** یعنې سړي هیڅ کله د خپل خالق حق نه دی پېژندلی، او هر څه حکم یې چې ورکړی وي؛ تر اوسه پوره یې په ځای نه دی راوړی.

فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ اِلٰى طَعَامِهٖٓ ﴿۲۴﴾

نو ودې ګوري انسان خپل طعام ته.

**تفسیر:** ړومبی د انسانانو د پیدا کېدلو او مړ کېدلو ذکر وو، اوس د هغه د ژوندون او د بقاء د سامان داسې یادونه کوي چې:

اَنَّا صَبَبْنَا الْمَآءَ صَبًّا ﴿۲۵﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا الْاَرْضَ شَقًّا ﴿۲۶﴾

بېشکه مونږ تویې کړې دي اوبه (له ورېځو څخه) په تویولو سره. بیا څیرې کړې ده مونږ ځمکه په څیرولو سره.

**تفسیر:** یعنې د یوه تنکي وابښه څه طاقت دی چې ځمکه څیري کوي او زرغونیږي، دا د الله تعالی قدرت دی، چې ځمکه څیروي، او هغه او نورې راز راز غلې، دانې، مېوې او نور ترکودې او نباتات ځنې راوباسي.

فَاَنْۢبَتْنَا فِيْهَا حَبًّا ﴿۲۷﴾ وَّعِنَبًا وَّقَضْبًا ﴿۲۸﴾ وَّزَيْتُوْنًا وَّنَخْلًا ﴿۲۹﴾ وَّحَدَآئِقَ غُلْبًا ﴿۳۰﴾ وَّفَاكِهَةً وَّاَبًّا ﴿۳۱﴾ مَّتَاعًا لَّكُمْ وَلِاَنْعَامِكُمْ ﴿۳۲﴾

بیا مو زرغونې کړې دي په هغې (ځمکې) کې دانې. او انګور او ترکاري. او زیتون خونه او خرما. او باغونه ګڼ (له جهته د ډېروالي د ونو نه). او (تازه) مېوې او (وچې مېوې یا) وابښه. (ومو کړل دغه ټول څیزونه) لپاره د نفع د تاسې اود حیواناتو د تاسې.

**تفسیر:** یعنې ځینې شیان ستاسې په کار درځي، او ځینې ستاسې د حیواناتو پکاریږي.

فَإِذَا جَآءَتِ ٱلصَّآخَّةُ ﴿٣٣﴾

نو کله چې راشي سخت اواز غوږونه کڼوونکی (د دویمې نفخې).

تفسیر: یعنې داسې سخت غږ چې په هغه غوږونه کڼیږي، له دې څخه مراد د نفخ الصور غږ دی.

يَوْمَ يَفِرُّ ٱلْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ ﴿٣٤﴾ وَأُمِّهِۦ وَأَبِيهِ ﴿٣٥﴾ وَصَٰحِبَتِهِۦ وَبَنِيهِ ﴿٣٦﴾ لِكُلِّ ٱمْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ ﴿٣٧﴾

هغه ورځ چې تښتي به سړی له خپله وروره. او له خپلې مور او له پلاره. او له خپلې ملګرې (ښځې) او له خپلو ځامنو. هر سړي لره له هغو څخه په دغې ورځې کې به یو حال وي چې بې پروا کوي یې (له نورو له احوالو نه).

تفسیر: یعنې په هغې ورځې کې به هر څوک د خپل ځان په فکر کې وي، هیڅ یو له احبابو او خپلوانو څخه به د بل په فکر کې نه وي، بلکه له دې وېرې چې بل څوک ځما نیکي وانخلي، یا د خپل حق غوښتنه ونه کړي؛ یو له بله تښتي.

وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿٣٨﴾ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿٣٩﴾

ځینې مخونه به په دغې ورځې کې روښانه (وي د ایمان له رڼا). خندېدونکي خوشاله به وي (په موندلو د کرامت چې مؤمنان دي).

تفسیر: یعنې د مؤمنانو له څېرې څخه به خندا اوخوشالي ښکاري، چې شکر له عذابه خلاص او د الله تعالی په کرامت سره مو اختصاص وموند، او د ایمان له نوره به یې مخونه روښانه وي، او له ډېره مسرته به خاندي، او خوشاله به اوسي.

وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿٤٠﴾ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿٤١﴾

او ځینې مخونه په دغې ورځې کې په دوی باندې به ګرد وي. پټ کړي به وي هغه مخونه (ګرد) ظلمت او توروالی.

تفسیر: یعنې د کافرانو په څېرو باندې به د غم او کدورت او خپګان دوړې بربښي، او د فسق او فجور ظلمت او تیاره به یې ښې تورې کړي

أُو۟لَٰٓئِكَ هُمُ ٱلْكَفَرَةُ ٱلْفَجَرَةُ ﴿٤٢﴾

دغه ټول (تورمخي) همدوی دي (بې شرم) کافران فاجران.

تفسیر: هر کله چې دوی کافر او د الله تعالی احکامو څخه منکر وو، او مختلف جرمونه یې کول؛ نو مخونه به یې تور او ګرد به پټ کړي وي.

تمّت سورة عبس بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.

# سُورَةُ التَّكْوِيرِ

«د (التکویر) سورت مکي دی، (۲۹) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۸۱) په نزول کې (۷) سورت دی، وروسته د «تبّت» د سورت څخه نازل شوی دی.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴿١﴾

کله چې (د) لمر (رڼا) ونغښتله شي (نور يې لاړ شي).

تفسیر: ګواکې د لمر هغه اوږدې شغلې به چې تودوخې رڼا ورڅخه وځي؛ ونغښتلی شي، او لمر به بې نوره شي، او د خیدک (پنېر) چکی ته به ورته وي، یا به هیڅ نه ښکاري.

وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ ﴿٢﴾

او کله چې ستوري خړ شي (یا راولوېږي په ځمکه).

تفسیر: یعنې ستوري به راولوېږي، او رڼا به نه لري.

وَإِذَا الْجِبَالُ سُيِّرَتْ ﴿٣﴾

او کله چې غرونه روان کړل شي.

تفسیر: یعنې غرونه به له خپلو ځایونو څخه روانیږي، او په هوا کې به الوځي او ګرځي به.

وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ﴿٤﴾

او کله چې د لسو میاشتو بلاربې اوښې خوشې کړی شي (اوښبانه به ورسره نه وي).

تفسیر: اوښ د عربو له ښو ځاروو څخه دی، او هغه اوښه چې د لسو میاشتو بلاربه وي، او له هغې د شودو او جونګې ځېږېدلو هیله نژدې وي، پر دوی ډېر ګرانه وي، خو د قیامت د ویروونکې زلزلې په وخت کې به د هغه نفیس او عزیز او ګران مال پوښتنه به هم ونه کړه شي، یا د هغه خاوند به دغومره خپه او پرېشانه وي چې د داسې عزیز او ګران مال له احواله به غافل وي.

وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ ﴿٥﴾

او کله چې وحشي ځناوران راټول کړل شي (لپاره د قصاص اخیستو یو له بله).

تفسیر: ځینو مفسّرینو د «حشر» معنی مړه کول او ځینو مړه کول بیا ژوندي کول لیکلي دي، والله أعلم.

وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴿٦﴾

او کله چې بحرونه سیندونه سره ګډ کړل شي (تریخ له خواږه سره یا ډېر سخت ګرم شي، یا وچ کړی شي؛ نو په کې به پاتې نشي یو ځاځکی اوبو).

تفسیر: یعنې د لویو لویو سیندونو اوبه به له ډېرو خوټېدلو څخه د بخار او بړاس په ډول کیږي، چې د هغو له تودوخې څخه به په محشر کې کفارو ته سخت ربړ پیښیږي، او د تناره په شان به د سیندونو له منځه سخت سوځوونکی اور او د بخار او بړاسونو غړوسکې پورته کیږي، یا کله چې دریابونه بل کړ شي؛ نو وګرځي اور.

وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴿٧﴾

او کله چې نفسونه جوړه کړل شي (پیوست کړل شي ارواح له جثو سره، یا یو ځای کړل شي هر څوك له مثل خپل سره، نېکان له نېکانو سره، بدان له بدانو سره).

تفسیر: یعنې مسلمان له مسلمان سره او کافر له کافر سره، بیا هر راز عمل کوونکی که ښه وي که بد؛ لکه له خپل همجنس عمل کوونکي سره به مله شي، د عقائدو، اعمالو، اخلاقو او نورو په اعتبار به له هر یوه څخه بېل بېل ټولګي جوړیږي، یا دا چې ارواح به له خپلو اجسامو سره جوړه کړل شي.

وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ ﴿٨﴾ بِأَيِّ ذَنْبٍ قُتِلَتْ ﴿٩﴾

او کله چې له جینۍ ژوندۍ خښې کړی شوې څخه وپوښتېدل شي. (داسې) چې په کوم ګناه وژلې شوې ده (دا جینۍ).

تفسیر: د جاهلیت په عربو کې قاعده وه، چې پلار به خپله جینۍ په ډېرې بېرحمۍ سره ژوندۍ په ځمکه کې خښوله، ځینو به د نېستۍ او غریبۍ، یا د هغې د واده د اخراجاتو له وېرې داسې کول، او ځینې به له دې شرمېدل چې څنګه به خپله جینۍ بل چاته ورکړم چې هغه مې ځوم وباله شي، قرآن کریم خبر ورکړ چې د دې مظلومانو په نسبت به هم په قیامت کې پوښتنې وشي، چې په کومه ګناه ژوندۍ خښې شوې دي؟ داسې یې مه ګڼئ چې دا مو اولاد دی، په دوی باندې مو هر څه چې زړه غواړي هغه کولی شئ؛ بلکه د اولادتوب له پلوه ستاسو دا جرم لا درنیږي.

وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ ﴿١١﴾

او کله چې اعمالنامې وغوړولی خپرې کړی شي. او کله چې اسمان د پوستکي په شان وویستلی شي (له خپله ځایه).

تفسیر: لکه چې د حیواناتو له حلالولو او پوستکي وښکلو څخه وروسته د هغه ګرد اعضاء او رګونه او پلې او نور ښکاري؛ همداسې د اسمان له پرانیستلو څخه وروسته ګرد پاس شیان لیدل کیږي.

وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ ﴿١٢﴾ وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ ﴿١٣﴾

او کله چې دوزخ بلې لمبې کړی شي (کافرانو ته). او کله چې جنّت نژدې کړ شي (مؤمنانو ته).

تفسیر: یعنې کفّارو ته دوزخ په ډېر زور او شور او بلو لمبو سره ورښکاره کاوه شي، او جنّت متّقیانو ته ورنژدې کیږي، چې د هغه ډول او سینګار به جنّتیانو ته خورا ښه خوښوونکی او مسرّت بښوونکی وي، نو په دغه وخت کې:

عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّآ أَحْضَرَتْ ﴿۱۴﴾

پوه به شي هر نفس په هغه شي چې حاضر کړی يې وي (له خير او له شره).

تفسير: يعنې هر يوه ته به دا پته ولګيږي، او ور معلومه به شي چې له ده سره د نېکۍ يا د بدۍ څومره پانګه او سرمايه شته، چې له ځان سره يې راوړې وي.

فَلَآ أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ ﴿۱۵﴾ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ﴿۱۶﴾

نو قسم خورم زه په (ستوريو) بېرته ګرځېدونکيو سمو تلونکيو پټېدونکيو باندې.

تفسير: ډېر ستوري لکه زُحل، مشتري، مريخ، زهره، او عطارد کله له مشرق څخه د مغرب په لوري، کله سم کله کاږه ځي، کله ګړندي او کله ورو خوځيږي، کله د لمر کله د سپوږمۍ څنګ ته نژدې کيږي، بيا څو ورځې پټيږي.

وَالَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿۱۷﴾ وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ ﴿۱۸﴾

او (قسم خورم زه) په شپې کله چې راوخيژي مخ راوګرځوي (په تيارو خپلو سره). او (قسم خورم زه) په صبا کله چې ساه ووهي راوخيژي (روښانه شي).

تفسير: يا کله چې شپه راشي يا لاړه شي، د «عسعس» لفظ دوه معناوې لري، د پاس قسمونو جواب دادي چې الله أکرم شأنه و أعظم برهانه داسې فرمايي:

إِنَّهُۥ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿۱۹﴾ ذِى قُوَّةٍ عِندَ ذِى الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿۲۰﴾ مُّطَاعٍ ثَمَّ أَمِينٍ ﴿۲۱﴾

بېشکه دا قرآن خامخا قول وينا د رسول عزتمن (جبريل) ده. چې خاوند د قوّت زور په نزد د څښتن د عرش، مرتبې والا دی. منلی شوی دی هلته امين دی.

تفسير: دا د جبرئيل عليه السلام صفتونه دي، يعنې قرآنکريم چې د الله جل جلاله له لوري مونږ ته رارسېدلی دی، د وصول دوه وسيلې لري، يوه وحي راوړونکې پرښته جبريل عليه السلام، دويم څمونږ پيغمبر عربي محمد صلی الله عليه وسلم، د دوی دواړو صفتونه داسې دي چې د هغو له ښکاره کېدلو څخه بيا هيچا ته د قرآن مجيد په منزل من الله او صداقت کې هيڅ شک او شبهه نه پاتې کيږي، د يوې خبرې په رښتيا منلو کې لوی دليل دا دی چې راوي يې په اعلی درجه ثقه، عدل، ضابط، حافظ او أمين وي، او له هغه چا څخه چې روايت کوي؛ د ده په مخ کې عزّت او حرمت لرونکی وي، او خورا معتبر ثقات د هغه په امانت باندې ډاډه وي، کلي اعتماد ولري، او د هغه خبرې بې له وړاندې وروسته کولو څخه د زړه له کومې ومنې، دا ګرد صفتونه په جبريل عليه السلام کې شته، عزتمن او کريم هغه څوک دي چې متقي او ډېره پاکي ولري، او له الله تعالی څخه خورا وېرېدونکی وي: ﴿إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ﴾ په حديث کې دي: «الكرم التقوى».

﴿ذِى قُوَّةٍ﴾ اشاره ده کامل حفظ، ضبط او د بيان کامل قوت ته، او د الله تعالی په مخ کې هغه د لوېې درجې خاوند دی، يعنې د ګردو پرښتو څخه د الله تعالی په دربار کې نژدې ځای لري، د اسمان پرښتې د هغه حکم منې، ځکه چې هغوی ګردې د هغه په امانت اعتبار او عزّت باندې خبرې دي، دا خو د ملکې رسول خبره ده، اوس د بشري رسول خبرې هم واورئ.

وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ۝٢٢

او نه دی صاحب ملګری ستاسې (محمد) لېونی (لکه چې پرې ګمان کوئ تاسو، بلکه ښه پوه او هوښیار دی).

تفسیر: یعنې له بعث پخوا تر څلوېښتو کلونو پورې تاسې له (محمد) سره لیدلي دي، او په دې اوږده موده کې مو د هغه د پټو او ښکاره وو خبرو تجربه کړې ده، خو هیڅکله مو د هغه فریب، دروغ او لېونتوب نه دی لیدلی، او تل مو د هغه د رښتیا، امانت، عقل او پـوهې اعتراف او ستاینه (صفت) کاوه، اوس نو ولې بې سببه هغه ته لېونی او دروغجن ویل کیږي؟ لکه چې دا ستاسې هغه رفیق او ملګری نه دی؟ چې د هغه ګرد احوال تاسې ته ښکاره دي، نو اوس داسې سړي تـه لېونـی ویل آیا لېونتوب نه دی؟ بلکه لېونتوب دی !.

وَلَقَدْ رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ۝٢٣

او خامخا په تحقیق لیدلی وو (محمد) هغه (جبریل د اسمان) په څنډه (غاړه) روښانه کې.

تفسیر: یعنې په مشرقي څنډه کې د هغې پرښتې یعنې جبریل علیه السلام بڼه یې په اصلي صورت او ښه شان سره ولیده.

وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ ۝٢٤

او نه دی دغه (محمد د وحي) پر پټو خبرو باندې بخیل (چې پټوي یې او تعلیم د هغې تاسې ته نه کوي).

تفسیر: یعنې دا پیغمبر تاسې ته د هر راز پټې خبرې که په تېره که په راتونکي پورې اړه لري خبر درکوي، یا د الله تعالی د اسماوو او صفاتو، یا د شرعي احکامو، یا د مذاهبو د حقیقت او بطلان، یا د جنّت او دوزخ د خبرو، یا له مړینې څخه وروسته د پېښو او په هغو پورې تړلې خبرو په درښوولو کې لږ بخل هم نه کوي.

وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ۝٢٥

او نه ده دا (قرآن) خبره د شیطان رټلي، ویشتلی شوي (په شُغلو سره).

تفسیر: هیڅکله شیطان د هغو ښو چارو ښوونه نه کوي، چې په هغو کې د بنیادمانو ګټه او د هغه ملعون تقبیح او مذمّت وي، بلکه دغه (قرآن مجید) د الله أکرم شأنُه وأعظم برهانُهُ حق کلام دی.

فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ۝٢٦

نو چېرته ځئ تاسو (ای منکرانو کافرانو په دې انکار او په څنګ کولو کې له قرآنه).

تفسیر: یعنې کله چې دروغ، لېونتوب، تخیل، توهم، کهانت او نور ګرد احتمالات لرې شول؛ نو پر ته له حق او رښتیا څخه نور څه پاتې شول؟ بیا نو ای منکرانو دا سمه صافه لاره ولې پرېږدئ؟ او بې لارې ولې ځئ؟.

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ ۝٢٧

نه دی دا (قرآن) مګر ذکر پند دی (له جانبه د الله) لپاره د خلقو (انس وي که جن).

**تفسیر:** هغه ګرد احتمالات چې تاسو د قرآنکریم په نسبت پیدا کړي؛ هغه ګرد سره غلط دي، که تاسې د دې قرآن په خبرو او ښوونو ښه فکر او جاج ووهئ؛ نو دا به درښکاره شي چې دغه قرآن ټول جهان ته د ډېر ښه لار ښوونکی او مکمّل دستور العمل دی، چې په عمل کولو یې د دواړو دارینو فلاح او ګټې په لاس راځي، نه دی دا قرآن مګر ذکر پند دی له جانبه د الله أکـرم شأنُهُ وأعظم برهانُهُ لپاره د خلقو مخصوصًا.

لِمَنْ شَآءَ مِنْكُمْ أَنْ يَّسْتَقِيْمَ ﴿٢٨﴾

هغه چاته چې غواړي قصد وکړي له تاسې د سمېدلو خپلو (داسې چې سم برابر لاړ شي پر لاره د الله تعالی باندې).

**تفسیر:** یعنې دغه قرآن مجید په تېره بیا هغو لره پند دی چې په سمه لاره تلل غواړي، کوږ تګ او عناد یې نه وي خوښ؛ ځکه چې داسې سړی له داسې پند څخه ډېره ګټه اخلي.

وَمَا تَشَآءُوْنَ إِلَّآ أَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٩﴾

او نه شئ قصد کولی تاسې (د سمې لارې) مګر هغه چې اراده وفرمایي الله (د قصد د تاسې د سمې لارې)، چې رب پالونکی د (ټولو) عالمیانو دی.

**تفسیر:** یعنې پخپله قرآنکریم پند دی، ولې تأثیر یې د الله تعالی په مشیت پورې اړه لري، چې ځینو باندې اثر کوي، او په ځینو نور باندې د ځینو نورو حکمتونو په سبب څه اثر نه کوي.

تمّت سورة التکویر بفضل الله القدیر، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُوْرَةُ الْانْفِطَارِ

«د (الانفطار) سورت مکّي دی، (۱۹) آيته يوه رکوع لري، په نزول او په تلاوت په دوارو کې (۸۲) سورت دی، وروسته د (النّازعات) له سورته نازل شوی دی.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا السَّمَاءُ انْفَطَرَتْ ۝١ وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انْتَثَرَتْ ۝٢ وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ ۝٣

کله چې اسمان وچوي څيري شي. او کله چې ستوري راولوېږي، تيت په تيت (ګډوډ) شي. او په هغه وخت کې چې دريابونه ګډ شي (يو له بله سره او ټول يو درياب شي).

تفسير: يعنې د ترخو اوبو سيندونه به سره وخوټيږي، او د دې تندوبي له سببه به ترخې او خوږې اوبه سره ګډې وډې شي.

وَإِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ ۝٤

او کله چې قبرونه سره څيري لاندې باندې کړل شي (او مړي ژوندي ترې راپورته کړل شي).

تفسير: يعنې هغه شيان چې د ځمکې په منځ کې وي؛ د باندې به راغورځي، او مړي به له خپلو قبرونو څخه راووځي، هر کله چې وشي دا کارونه؛ قيامت قائميږي نو:

عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ ۝٥

پوه به شي هر نفس (په دغه وخت کې) په هغه خير او شر خپل باندې چې وړاندې يې لېږلی وي، او چې وروسته يې پرېښی وي.

تفسير: يعنې هغه ښې او بدې چارې چې کړي يې وي، يا يې نه وي کړې، د خپل عمر او منګ په اول کې يې کړې وي، يا په آخر کې د هغې نښې ورڅخه پاتې وي، او که نه وي پاتې؛ هغه ګرد هلته د ده په مخ کې راځي.

يٰأَيُّهَا الْإِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ۝٦

ای انسانه (کافره!) څه شي مغروره کړی يې ته پخپل رب کريم باندې (چې کافر شوی يې پرې).

تفسير: يعنې هغه کريم رب آيا د دې خبرې وړ وو چې ته د خپل جهل او حماقته د هغه په حلم او کرم باندې ډاډه شوې، سر به دې ورڅخنې غړاوه؟.

الَّذِيْ خَلَقَكَ فَسَوّٰىكَ فَعَدَلَكَ ۝٧

هغه (کريم رب) چې پيدا کړی يې ته، نو برابر کړی يې ته (يعنې اندامونه يې پوره در کړي دي) پس برابر معتدل کړی يې ته (په خلقت کې).

تفسیر: یعنې پیدا یې کړ یو لاس په اندازه د بل سره، او یوه سترګه په مقدار د بلې سره، په دې کې اشارت دی دېته چې هر کله دغه رب قدیر په دغه شان سره قدرت لري؛ نو قادر دی په بیا پیدا کولو سره لپاره د حساب او کتاب، او جزاء او سزا.

فِىٓ اَىِّ صُوْرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ۝٨

په هر شان (کامل) صورت سره چې وېې غوښته ترکیب؛ پیوند یې کړې ته.

تفسیر: یعنې د ګردو په بڼو (صورتونو) کې یې لږ او ډېر توپیر او تفاوت پیدا کړ، او هر یوه ته یې بېل رنګ، شکل او ډول عنایت کړ، او په مجموعي ډول سره یې انسانانو ته د نورو ساکښانو (جاندارو) په نسبت ښه بڼه (شکل) ورکړه.

كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ ۝٩

نه دی (دا غرور ستا مناسب)، بلکه دروغ وایئ تاسې ورځې د جزاء ته.

تفسیر: یعنې د تېروتلو بل هیڅ سبب نشته، تاسې چې د جزاء ورځ نه منئ؛ نو ځکه هر شی مو چې زړه غواړي هغه کوئ.

وَاِنَّ عَلَيْكُمْ لَحٰفِظِيْنَ ۝١٠ كِرَامًا كَاتِبِيْنَ ۝١١ يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ ۝١٢

حال دا چې بېشکه په تاسې باندې خامخا ساتونکي ملائکې (د عمل، مقررې دي). عزتمنې (په نزد د الله) لیکونکې (د اعمالو د تاسې). پوهیږي (دغه ملائک) په هغه څه چې کوئ یې تاسې.

تفسیر: یعنې دغه ملائکې چې کرام الکاتبین نومیږي، د الله تعالی داسې عزتمنې بندګانې دي، چې نه خیانت او درغلي کوي، او نه کوم کار نالیکلی پرېږدي، او نه له هغوی څخه ستاسې کارونه پټیږي.

اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِىْ نَعِيْمٍ ۝١٣

بېشکه چې ابرار (نېکان ـ مؤمنان) خامخا په نعمتونو (د جنّت) کې دي.

تفسیر: چې هلته به تل هر راز بخششونه او نعمتونه مومي، او تل به خوشاله او آرام وي، او د هیڅ یوه شي غم او اندېښنه به د جنّتیانو سره نه وي، او نه به یې له جنّت څخه د وتلو او د راحت له قلّته څه پروا وي.

وَّاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِىْ جَحِيْمٍ ۝١٤ يَّصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّيْنِ ۝١٥ وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَآئِبِيْنَ ۝١٦

او بېشکه چې فُجّار بدکاران (کافران) خامخا په دوزخ کې دي. ننوځي دوی په هغه کې په ورځې د جزاء کې. او نه به وي دوی هیڅ له هغه (دوزخ) څخه پټېدونکي.

تفسیر: یعنې نه به په تېښته له دوزخه جلا کېدی شي، او نه به له ننوتلو څخه وروسته له هغه ځای ووځي، بلکه تل به هلته په کې وي.

وَمَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ۝١٧ ثُمَّ مَآ اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الدِّيْنِ ۝١٨ يَوْمَ لَا تَمْلِكُ نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْـًٔا ؕ

او څه شي پوه کړی یې ته څه ده ورځ د انصاف جزاء. بیا څه شي پوه کړی یې ته څه ده ورځ د انصاف جزاء (یعنې بل څوک پرې نه پوهیږي بې له الله نه. د جزا ورځ ده) هغه ورځ چې نه به وي مالک نشي کولی هیڅوک له هیچا سره هیڅ شی (د نفعې او د ضرر).

**تفسیر:** یعنې هومره چې فکر او جاج ووهئ، او په غور او خیال کې ډوب لاړ شئ؛ بیا به هم د دې وېرووونکې ورځې په پوره کیفیت باندې نه پوهېږئ، خو لنډه یې دا چې دومره وپوهېږئ چې په هغه ورځ به دا ټولې خپلوۍ او خپښي، اشنایي او یاراني ورکې شي، او هر سړی به «نفسي ! نفسي !» نارې وهي، هیڅوک به پرته دمالك الملك له امر څخه د بل چا شفاعت نه کوي، عاجزي، چاپلوسي، صبر، او استقلال او نور هیڅ کار نشي کولی «الا من رحم الله».

وَالْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ ﴿١٩﴾

او امر حکم په هغه ورځ کې خالص الله لره دی.

**تفسیر:** یعنې لکه چې په دنیا کې د ټولواك (حاکم) او باچا حکم په رعیّت باندې، او د مور او پلار خبره په اولادو باندې، او د بادار وینا په نوکرانو چلیږي؛ په هغه ورځ کې به دا ټول حکمونه پای ته رسیږي، او د هیچا امر په بل چا باندې نه چلیږي، او پرته د هغه مطلق شهنشاه او لوی ستر ټولواك (حاکم) له احکامه ځنې بل څوك سا هم نشي وښکلی، او هیڅ قوّت او قدرت به نه لري.

تمّت سورة الانفطار بفضله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُوْرَةُ الْمُطَفِّفِيْنَ

«د (المطفّفين) سورت مکّي دی، (۳۶) آيتونه يوه رکوع لري، په تلاوت کې (۸۳) په نزول کې (۸۶) سورت دی، وروسته د (العنکبوت) له سورته نازل شوی دی، او د مکّي سورتونو آخري سورت دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ ﴿١﴾ الَّذِيْنَ اِذَا اكْتَالُوْا عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُوْنَ ﴿٢﴾ وَاِذَا كَالُوْهُمْ اَوْ وَّزَنُوْهُمْ يُخْسِرُوْنَ ﴿٣﴾

افسوس هلاکت خرابي يا کنده د دوزخ ده کم کوونکيو لره (په پيمانه او تول کې). هغه (کسان) هر کله چې ځان ته اخلي پيمانه نو پوره اخلي. او کله چې پيمانه ورکوي يا يې تلي هغوی ته؛ نو کمی کوي (پوره يې نه ورکوي).

تفسير: له خلقو څخه خو خپل حق او برخه پوره اخيستل بد او مذموم نه دي، دلته د دې خبرې بد ويل مقصود نه دي، بلکه د لږ ورکولو د مذمّت د تاکيد لپاره دی، يعنې اګر که لږ ورکول په خپله في نفسه هم مذموم دی، خو که له دې سره د اخيستلو په وخت کې د نورو بالکل رعايت نه کيږي؛ نو دا لا مذموم دی، پرته له رعايت کوونکي څخه چې که په هغه کې يو عيب شته خو يو هنر هم لري، نو دا دې په هغه پسې، نو څکه د هغه رومبني سرې عيب لا شديد شو، څرنګه چې اصلي مراد د لږ ورکولو مذمّت دی، نو څکه يې دلته پيمانه او ژی او وزن تلل دواړه ياد کړل، تر څو خبره ښه ښکاره او جوته شي چې د پيمانه کولو او تللو د دواړو په وخت کې لږ ورکوي، او څنګه چې پوره اخيستل پخپله في نفسه کومه بده خبره نه ده؛ نو يو ځلي يې د تأکيد لپاره ياد کړ، د پيمانې او اوژې (تول) تخصيص ښايي د دې لپاره وي چې په عربو په تېره بيا په مدينې منورې کې زياتره د کيل او پيمانې سره پيرودلو (اخيستلو) او پلورلو (بيع و شراء) رواج درلود (لرلو)، پرته له دې د دې تخصيص نور وجوه هم شته.

اَلَا يَظُنُّ اُولٰٓئِكَ اَنَّهُمْ مَّبْعُوْثُوْنَ ﴿٤﴾ لِيَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿٥﴾

آيا يقين نه کوي (ډېر اخيستونکي لږ ورکوونکي دغه) چې بېشکه دوی راپورته به کړل شي لپاره (د حساب) د لويې ورځې (د قيامت).

تفسير: يعنې که هغوی داسې خيال لري چې وروسته له مړ کېدلو بيا ژوندون شته، او د الله تعالی په مخ کې د ګردو حقوقو او فرائضو او چارو حساب او شمېر ورکول حق دي؛ نو هيڅکله به يې داسې حرکت او خوځېدل نه کول.

يَّوْمَ يَقُوْمُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٦﴾

هغه ورځ چې وبه دريږي خلق لپاره (د احکام) د رب د ټولو مخلوقاتو.

كَلَّآ اِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْنٍ ﴿٧﴾

داسې پکار نه ده (او نه دې کوي ډېراخيستل او لږ ورکول په تجارت او غفلت له قيامت نه)، بېشکه ليکلی شوي اعمال د فاجرانو (کافرانو) خامخا په سجّين کې دي.

تفسير: يعنې له سره هسې ګمان ونه کړ شي چې داسې ورځ به نه راځي، ځکه چې هغه ورځ هرومرو راتلونکې ده، نو د هغې ورځې د راتګ لپاره د ګردو نېکانو او بدانو عملنامې ليکلې د کرام الکاتبين په دفترو کې مرتّب اېښودلی شوي دي.

(اوس الله أجلّ شأنُهُ وأعظمَ برهانُهُ ويروي فاجران بالعموم او داسې فرمايي):

وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا سِجِّينٞ ۝٨ كِتَٰبٞ مَّرۡقُومٞ ۝٩

او څه شي پوه کړی يې ته (ای محمده !) چې څه دی سجّين. يو دفتر دی ليکلی شوی (د فجّارو د اعمالو).

تفسير: يعنې سجّين يو داسې دفتر دی چې په هغو کې د ګردو دوزخيانو نومونه ليکلي شوي دي، او د بندګانو د چارو ليکونکې پرښتې چې د هغوی دنامه يادونه په پخواني سورت کې وشوه د دې بدکارانو د مړه کېدلو او د عمل له پرېکېدلو څخه وروسته د هر يوه سرې چارې په بېلو بېلو دفترو کې ليکي، او په دې دفتر کې يې داخلوي، د هر يوه دوزخي د نامه لپاره يوه بېله علامه او نښه اېښودله شي، چې هغه دوزخي دی، او د هغه د ليدلو څخه هر څوک پوهېږي چې په کې خير نشته، له ځينو روايتونو څخه دا ښکاري چې د کافرانو ارواح په همدغه ځای کې وي، ځينې پخواني مفسّرين وايي چې: دا ځای تر اوومې ځمکې لاندې دی، الله تعالی أعظم برهانُه په داسې خبرو ښه پوهېږي.

وَيۡلٞ يَوۡمَئِذٖ لِّلۡمُكَذِّبِينَ ۝١٠ ٱلَّذِينَ يُكَذِّبُونَ بِيَوۡمِ ٱلدِّينِ ۝١١ وَمَا يُكَذِّبُ بِهِۦٓ إِلَّا كُلُّ مُعۡتَدٍ أَثِيمٍ ۝١٢

افسوس هلاکت خرابي يا کنده د دوزخ ده په دغې ورځې کې دروغ ګڼونکو لره. هغه کسان چې دروغ وايي په ورځې د انصاف جزاء باندې. او دروغ نه ګڼي دغه (ورځ د جزاء) مګر هر يو له اندازې تېرېدونکی ګنهګار.

تفسير: هغه څوک چې د جزاء له ورځې څخه منکرېږي؛ په حقيقت کې د الله تعالی د ربوبيت او د هغه عدل، قدرت، حکمت او نورو صفاتو څخه منکرېږي، او هغه څوک چې د الله تعالی له دې صفاتو څخه منکرېږي؛ نو هرومرو چې په ګناهونو کې زړور شي لره ده، د﴿مُعۡتَدٍ أَثِيمٍ﴾ يعنې له اندازې تېرېدونکی ګنهګار، بل بد عادت دغه دی چې:

إِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِ ءَايَٰتُنَا قَالَ أَسَٰطِيرُ ٱلۡأَوَّلِينَ ۝١٣

کله چې ولوستلی شي په ده باندې آيتونه (د قرآن) ځمونږ؛ نو وايي (جهلاً او عنادًا چې دا) چټي (بېکاره) قصې دي د پخوانيو.

تفسير: يعنې کله چې قرآنکريم او د پند خبرې اوري؛ وايي: داسې خبرې به پخوانيو خلقو هم کولې، اوس هم هغه پخوانۍ قصې او له کاره وتلې افسانې ويلی کيږي، نو مونږ له داسې قصو او افسانو څخه کله ويريدونکي يو؟ (العياذ بالله).

كَلَّاۖ بَلۡۜ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُواْ يَكۡسِبُونَ ۝١٤

نه ده داسې (لکه چې وايي منکران)، بلکه زنګ اچولی دی پر زړونو د دوی هغو ګناهونو چې وو دوی چې کول به يې.

**تفسیر:** یعنې ځمونږ په آیتونو کې هیڅ د شك او شُبهې ځای او موقع نشته، خبره خو دا ده چې د ګناهونو د کثرت او مزاولت څخه د هغوی په زړونو باندې زنګ لوېدلی دی، نو ځکه د صحیحو حقائقو انعکاس په هغو کې نه کیږي، په حدیث کې راغلي دي: «کله چې سړی ګناه کوي؛ یو تور ټکی د هغه په زړه کې پیدا کیږي، که توبه یې وکړه؛ نو دا ټکی لرې کیږي، که نه هومره چې ګناه کوي؛ په همغه اندازه دا ټکی پلنیږي او ارتیږي، تر دې چې د ده زړه ټك تور شي، او د حق او د باطل هیڅ فرق او تمیز نشي کولی».

كَلَّآ إِنَّهُمْ عَن رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ لَّمَحْجُوبُونَ ﴿١٥﴾

رښتیا ده چې بېشکه دوی به له (لقاء د) رب خپله په دغې ورځې (د قیامت کې) خامخا په حجاب کې وي (نه به ویني الله).

**تفسیر:** یعنې د دې انکار او تکذیب د انجام او پای څخه ښايي چې بې فکره نشي، هغه وخت خامخا راتلونکی دی چې په هغه کې مؤمنین د حق سبحانه وتعالی په لقاء او لیدلو سره مشرّفیږي، او دا بدبختان به ترې محروم او ممنوع او بې برخې پاتې کیږي.

ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيمِ ﴿١٦﴾ ثُمَّ يُقَالُ هَٰذَا الَّذِي كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ ﴿١٧﴾ كَلَّآ

پس بېشکه دوی چې دي خامخا ننوتونکي دي دوزخ ته. بیا به وویل شي (دوی ته چې): دا هغه (عذاب) دی چې وئ تاسې چې هغه به مو دروغ ګاڼه انکار به مو ترې کوو. له سره نه ده داسې.

**تفسیر:** یعنې د دې بدانو او نېکانو پای او انجام هیڅکله یو شانې نشي کېدی، او الله جل جلاله ابرارو سره دغسې معامله فرمايي:

إِنَّ كِتَٰبَ الْأَبْرَارِ لَفِي عِلِّيِّينَ ﴿١٨﴾ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا عِلِّيُّونَ ﴿١٩﴾ كِتَٰبٌ مَّرْقُومٌ ﴿٢٠﴾

بېشکه هغه کتاب چې پکی لیکلي شوی اعمال د ابرارو نېکانو خامخا په علیین کې دی. او څه شي پوه کړې ته (ای محمده) چې څه دی علیین؟. یو دفتر دی لیکلی شوی (د اعمالو د ابرارو).

**تفسیر:** چېرته چې د جنتیانو نومونه لیکلي شوي دي، او د هغو یا د ښو چارو پاڼې سره روڼې او ترتیب شوي دي؛ ړومبی د هغو ارواح هلته بیولی کیږي، بیا یې د خپلې هستوګنې اصلي ځای ته بيايي، د دې ارواحو څه علائق او اړیکې به له قبر سره هم وي، ویل کیږي چې دا ځای پر اووم اسمان دی، او د مقرّبینو ارواح به هلته هستوګنه لري، والله أعلم.

يَشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُونَ ﴿٢١﴾

چې ګوري حاضریږي هغه ته مقرّبان (د الله ملائکې او نور بندګان).

**تفسیر:** مقرّبې پرښتې یا د الله تعالی مقرّب بندګان په خوشالی سره د مؤمنانو اعمالنامې ګوري، او هلته به حاضر وي.

إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ﴿٢٢﴾ عَلَى الْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴿٢٣﴾

بېشکه ابرار نېکان خامخا په نعیم لوی نعمت د (جنّت) کې دي. پر (مکلّلو) تختونو باندې ناست ګوري (د الله لقاء او د جنت نعماء، او ترې متلذذ کیږي، یا به ګوري دوزخیانو ته).

تفسیر: یعني په خورا ښو پالنګونو به ناست وي، او په زړه پورې د جنّت ښې ننداري به کوي، او د الله تعالی په لیدلو سره به خپلې سترګې رڼوي، او زړونه به پرې خوشالوي.

تَعۡرِفُ فِي وُجُوهِهِمۡ نَضۡرَةَ ٱلنَّعِيمِ ﴿٢٤﴾

پېژنې به ته (ای کتونکیه !) په مخونو د دوی کې تازه ګي د نعیم (تنعّم د جنّت).

تفسیر: یعني د جنّت له عیش او آرام څخه به د هغوی څېرې داسې ښې او تروتازه او بارونقې ښکاري، چې هر لیدونکی به له لرې پوهیږي چې دا کسان په خورا عیش، هوسايي، راحت او تنعّم کې دي.

يُسۡقَوۡنَ مِن رَّحِيقٖ مَّخۡتُومٍ ﴿٢٥﴾ خِتَٰمُهُۥ مِسۡكٞۚ

ورڅښولی شي (هغوی ته) له خالصو شرابو مهر کړیو شویو څخه. چې مهر به یې مشک وي.

تفسیر: شاه صاحب لیکي چې: «په جنت کې به د خورا خالصو شرابو ویالې د هر چا د کور د مخه وي، خو دا خورا ښه او نادر شراب دي، چې سر به یې تل مهر وي په جنّتي مشکو سره»، لکه چې په دنیا کې مهر په لاکو یا مومو یا خاورو یا ختو یا نورو شیانو باندې لګول کیږي، کله چې دهغه ځای خاورې مشک دي؛ نو په هغو باندې دا مهر لګاوه کیږي. دا ښيښه چې په لاس کې واخیسته شي؛ دماغ معطریږي، او تر آخره پورې د خوشبويۍ خورا ښه رائحه او وږم ترې پورته کیږي.

وَفِي ذَٰلِكَ فَلۡيَتَنَافَسِ ٱلۡمُتَنَٰفِسُونَ ﴿٢٦﴾

او په دغه (شرابو او نورو جنتي نعماوو) باندې پس بايده دي چې رغبت وکړي رغبت کوونکي (په کولو د فضائلو او پرهېښودلو د رذائلو، چې عجلت وکړي په حسناتو او ځان وساتي له سيئاتو).

وَمِزَاجُهُۥ مِن تَسۡنِيمٍ ﴿٢٧﴾ عَيۡنٗا يَشۡرَبُ بِهَا ٱلۡمُقَرَّبُونَ ﴿٢٨﴾

او ګډون د هغه (شراب دی له اوبو د) تسنیم څخه. دا (تسنیم) یوه چینه ده (په جنّت کې) چې څښي به له هغې څخه د (الله) مقرّبان.

تفسیر: یعني مقرّب خلق يواځې د دې چینې خالص شراب څښي، او نېکانو ته به د دې شرابو ګډه ورکول کیږي، چې لکه ګلاب او نور په هغه شراب کې ګډیږي.

إِنَّ ٱلَّذِينَ أَجۡرَمُواْ كَانُواْ مِنَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ يَضۡحَكُونَ ﴿٢٩﴾

بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي؛ وو دوی په هغو کسانو باندې چې ایمان یې راوړی وو خندل به یې (مسخرې به یې پرې کولې).

تفسیر: او پخپلو منځونو کې به یې په تمسخر او استهزاء سره داسې ویل چې: د دې بې هوشانو په مغزو کې څه یو چټي خیال لوېدلی دی، چې د نن موجود او محسوس خوندونه او لذّتونه د جنّت په صباح موهومو چرتونو او خیالي لذّتونو باندې له لاسه وباسي (والعیاذ بالله).

وَإِذَا مَرُّواْ بِهِمۡ يَتَغَامَزُونَ ﴿٣٠﴾

او کله چې تیریږي منکران پر مؤمنانو باندې؛ هغوی به پخپلو منځونو کې سره سترګکونه وهي (لپاره د استهزاء).

تفسیر: او یو تر بله په سترګو اشارتونه کوي، او د حال او قال په ژبه پخپلو منځونو کې سره داسې وايي چې: وګورئ همدوی بې عقلان او احمقان دي، چې د جنت په پور باندې د دنیا له نغدو څخه ځان بې برخې کوي، (استغفر الله).

وَإِذَا انقَلَبُوٓا۟ إِلَىٰٓ أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا۟ فَكِهِينَ ﴿٣١﴾

او کله چې وګرځي خپلو کورونو ته؛ (نو) ګرځي دوی خوشاله (خبرې جوړوونکي په سبب د تمسخر او استهزاء پر مؤمنانو باندې).

تفسیر: یعنې په خوش طبعي او ټوکو په مسلمانانو باندې ملنډې وهي، او په خپل عیش او عشرت باندې مفتون او مغرور شوي وايي چې: څمونږ عقیده او فکر ښه دی، که نه مونږ ته دومره نعمتونه او هوسایي ولې او له کومه رسېده !؟.

وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوٓا۟ إِنَّ هَٰٓؤُلَآءِ لَضَآلُّونَ ﴿٣٢﴾

او کله چې وبه لیدل (کفّارو) دغه (مؤمنان)؛ نو ویل به یې پخپل منځ کې چې: بېشکه دغه (مؤمنان) خامخا بې لارې دي.

تفسیر: کافرو به مسلمانانو ته ګمراه ویل، ځکه چې مسلمانان د دوی په عقیده نه وو.

وَمَآ أُرْسِلُوا۟ عَلَيْهِمْ حَٰفِظِينَ ﴿٣٣﴾

حال دا چې نه دي لېږلي شوي (کافران) پر دغو (مؤمنانو) باندې ساتونکي څارونکي.

تفسیر: چې شاهدي ووايي په هدایت او ضلالت د دوی، دغه د الله جل شأنُه وأعظم برهانُهُ فرمان او بیان دی، چې دا کافران پر مسلمانانو باندې پیره داران نه دي مقرّر شوي، دا احمقان له خپلو بدو چارو څخه سترګې پټوي، او د هغوی د هر راز حرکاتو کتنه کوي، د خپل ځان د اصلاح په فکر کې نه لوېږي، او هغو کسانو ته چې په سمه لاره ځي ګمراه او احمق وايي.

فَٱلْيَوْمَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ مِنَ ٱلْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ﴿٣٤﴾

نو نن (ورځ د قیامت کې به) هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی په کُفّارو باندې خاندي.

تفسیر: یعنې د قیامت په ورځ به مسلمانان په دې کافرانو پورې خاندي، چې دا خلق څومره ناپوهـه وو، چې فاني او خسیس څیز ته یې په ښو نعمتونو او پاتې کېدونکیو نفیسو شیانو باندې ترجیح ورکوله، نو اوس څنګه په دوزخ کې پراته دي؟ او د دائمي عذاب خوند څکي؟.

عَلَى ٱلْأَرَآئِكِ يَنظُرُونَ ﴿٣٥﴾

پر مُکلّلو تختونو به ناست، ګوري به (الله تعالی ته او د جنت نعماوو ته او ترې متلذذ کیږي، یا ګوري کفارو ته چې څرنګه په عذابیږي).

تفسیر: یعنې د خپلې خوشالۍ او د کافرانو د بد ژوند ننداره کوي.

هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

بېشکه چې جزاء ورکړه شوه کفّارو ته همغسې چې کول يې (په دنيا کې له معاصيو).

**تفسير:** يعنې هغه کسان چې په دنيا کې يې پر مسلمانانو باندې خندل؛ نن د هغوی خپل حال د خندېدو لايق او ور دی، او مسلمانان د هغو په تېرو حماقتونو باندې خاندي.

تمّت سورة المطفّفين بفضل الله تعالى ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الانْشِقَاقِ

«د (الانشقاق) سورت مکّي دی، (۲۵) آیته یو رکوع لري، په تلاوت کې (۸۴) په نزول کې (۸۳) سورت دی، وروسته د (الانفطار) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا السَّمَآءُ انْشَقَّتْ ۝١ وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝٢

کله چې اسمان څیري شي وچوي. او واوري ومني امر حکم د رب خپل، او (دا اسمان) لایق وړ دی (د هغه الله حکم منلو ته).

تفسیر: یعنې کله چې د الله تعالی له خوا د څیریدلو «تکویني» حکم وشي؛ اسمان به هغه تعمیلوي او مني یې، او اسمان د مقدور او مقهور کېدلو له پلوه د دې خبرې وړ دی چې سره له دومره عظمت او رفعت او لویوالي او هسکوالي د خپل خالق او مالك په مخ کې غاړه کېږدي، او د هغه په دې منلو کې هیڅ ونه وایي.

وَإِذَا الْأَرْضُ مُدَّتْ ۝٣

او کله چې ځمکه وغوړوله شي.

تفسیر: د محشر لپاره به ځمکه د ربړ په شان جوړېږي، او د هغې د مخ ګرد عمارات او غرونه او نور شیان لري کیږي، تر څو په یوې مستوی سطحې باندې ګرد پخواني او وروستني خلق سره یو ځای او په یوه وخت کې بې له پردې او حجاب او حائل څخه وکتی شي.

وَأَلْقَتْ مَا فِيهَا وَتَخَلَّتْ ۝٤

او د باندې وغورځوي هغه چې دننه په کې وي له مړیو او خزائنو څخه، او ښه خالي شي له ټولو اشیاوو نه.

تفسیر: په هغې ورځې کې ځمکه خپلې خزانې او مړي او نور اجزاء له دننه څخه د باندې غورځوي، او منځ یې له هر هغه شي څخه بالکل تشیږي، چې د هغو تعلّق د بندګانو له حساب او کتاب سره وي.

وَأَذِنَتْ لِرَبِّهَا وَحُقَّتْ ۝٥

او واوري ومني امر حکم د رب خپل، او (دا ځمکه) لایقه وړ ده (د هغه الله حکم منلو ته).

تفسیر: کله چې ځمکه او اسمان د هغه الله تعالی د ذات او د تکویني حکم تابع او منقاد دي؛ نو سړي ته کله ښایي چې د هغه لوی پروردګار له تشریعي حکم څخه سر وغړوي.

يَا أَيُّهَا الْإِنْسَانُ إِنَّكَ كَادِحٌ إِلَىٰ رَبِّكَ كَدْحًا فَمُلَاقِيهِ ﴿٦﴾

اى انسانه ! بېشكه ته عمل كوونكى يې په پوره سعي سره تر وخت د رسېدلو رب خپل ته په عمل سعي كولو سره، نو ته يوځاى كېدونكى يې له دغه (خپل عمل او سعي او جزا يې مومې خير وي كه شر).

تفسير: يعنې د پروردګار په مخ كې له رسېدلو څخه پخوا هر سړى له خپل استعداد سره سم او موافق مختلف او راز راز رېړونه ګالي، څوك يې په طاعت كې زيار ګالي، څوك يې په سر غړولو كې ځان سترړى كوي، كه د خير په لاره كې وي يا د شر په لاره كې، هر رنګه رېړونه وباسي، آخر د خپل پروردګار حضور ته ورځي، او د خپلو اعمالو او چارو نتائج به ويني.

فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ ﴿٧﴾ فَسَوْفَ يُحَاسَبُ حِسَابًا يَسِيرًا ﴿٨﴾

پس هر هغه څوك چې وركړه شي كتاب عملنامه د ده په ښي لاس د ده كې؛ نو ژر ده چې حساب به وكړ شي له ده سره حساب اسان.

تفسير: اسان حساب دا دى چې په هره خبره باندې به تنقيدونه نه كيږي، او يوازې د هغه پاڼې وړاندې كيږي، او بې له بحث او مناقشې څخه به خوشې كيږي.

وَيَنْقَلِبُ إِلَىٰ أَهْلِهِ مَسْرُورًا ﴿٩﴾

او وبه ګرځي اهل خپل ته (په جنّت كې) خوشاله كړى شوى.

تفسير: نه د سزا خوف وي، نه د غُصې وېره، په ډېر امن او اطمينان سره د خپلو احبابو او اقاربو او مسلمانانو وروڼو ته وررسيږي، او له دوى سره په خوښى سره مشغوليږي، او له هغوى سره ګرځي.

وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ وَرَاءَ ظَهْرِهِ ﴿١٠﴾

او هر هغه څوك چې وركړ شي كتاب عملنامه د ده وروسته تر شا د ده (په كيڼ لاس يې).

تفسير: يعنې وركړه شي عملنامه په كيڼ لاس كې د شا له لورې، او پرښتې نه غواړي چې د ده هغه مخ ويني، نو په دې وسيله خپل زيات نفرت او كراهت له هغه څخه ښكاره كوي.

فَسَوْفَ يَدْعُو ثُبُورًا ﴿١١﴾

پس ژر به نارې كړي دى اى هلاكته (ځما را حاضر شه ! دا دې وخت دى).

تفسير: يعنې د عذاب له وېرې څخه به مرګ غواړي، او د خپل هلاكت ارزو او تمنّا به كوي.

وَيَصْلَىٰ سَعِيرًا ﴿١٢﴾ إِنَّهُ كَانَ فِي أَهْلِهِ مَسْرُورًا ﴿١٣﴾

او ننه به وځي دى بل اور (د دوزخ) ته. چې بېشكه وو دى په (دنيايي) اهل خپل كې خوشاله (په كفر او معاصى، غافل له آخرته).

**تفسير:** يعنې په دنيا کې له آخرته بې فکره وو، د هغه عوض او رنج دا دی چې نن په سخت غم ککړ دی.

إِنَّهُۥ ظَنَّ أَن لَّن يَحُورَ ﴿١٤﴾

بېشکه ده به يقين کاوه په دنيا کې داسې چې دی به له سره بېرته نه ګرځي (الله ته، او منکر وو له بعثه).

**تفسير:** يعنې ده به په دنيا کې ګمان کاوه چې له سره به الله تعالی ته رجوع ونه کړم، او قيامت نشته !، نه ده داسې بلکه:

بَلَىٰٓ إِنَّ رَبَّهُۥ كَانَ بِهِۦ بَصِيرًا ﴿١٥﴾

هو ! دی رجوع کوي (هرومرو الله ته)، بېشکه رب د ده دی په ده ښه پوه ليدونکی بينا.

**تفسير:** يعنې له پيدا کولو څخه تر مرګ پورې الله تعالی د ده په احوالو ښه خبر وو، نو آيا څه ګمان کاوه شي چې هغه به دې همداسې مهمل او معطل پرېږدي؟ ضرور دي چې د هغه د اعمالو نتيجې او ثمرې به ورښکاره کړي.

فَلَآ أُقْسِمُ بِٱلشَّفَقِ ﴿١٦﴾ وَٱلَّيْلِ وَمَا وَسَقَ ﴿١٧﴾

پس قسم خورم په شفق سوروالي يا سپينوالي د عشاء پس له سوروالي د ماښام. او په شپه او په هغو (څيزونو) چې جمع کړي وي (شپې هغه په تيارو خپلو کې).

**تفسير:** يعنې سرې او نور ساکښان چې د ورځې له مخې د معاش په تلاش کې د باندې ګرځي، او هر چېرې پخپلو چارو کې بوخت دي، د شپې له لوري ټول سره يو ځای کيږي، او هر يو په خپلو ځايونو کې سره ټوليږي.

وَٱلْقَمَرِ إِذَا ٱتَّسَقَ ﴿١٨﴾

او (قسم خورم) په سپوږمۍ کله چې پوره کامله شي.

**تفسير:** يعنې د څوارلسمې شپې سپوږمۍ چې د خپل کمال حد ته رسېدلې وي، (او ځواب د پاس قسمونو دا دی چې:)

لَتَرْكَبُنَّ طَبَقًا عَن طَبَقٍ ﴿١٩﴾

خامخا سواره به شئ وبه رسېږئ تاسې ای خلقو يو حال ته وروسته له بل حال نه.

**تفسير:** يعنې د دنيا په ژوندون کې له مختلفو دورو څخه په تدريج سره تېر شوئ، په پای کې د مرګ پورې دی، بيا د برزخ عالم دی، وروسته قيامت، الله تعالی پوهيږي چې په قيامت کې به څه څه احوال وليدل؟ او د څه څه مراتبو پرېکول درجه په درجه په مخ کې دي؟ لکه چې د شپې په اوله برخه کې تر څو چې شفق وي، يو شانته سره او سپينه رڼا وي، نو دا رڼا في الحقيقت او په رښتيا سره وي چې د لمر د پاتې شوي اثراتو او اغېز ننبې دي، چې پس له ورکېدلو د هغې د ظلمت بل دوره شروع کيږي، چې هر شی په کې پټيږي، په شپه کې سپوږمۍ هم راخيژي، چې درجه په درجه د هغې رڼا زياتيږي، کميږي، او په څوارلسمې شپې کې د پوره سپوږمۍ رڼا هم توره تياه فضاء رڼوي، ګواکې د انسان احوال طبقات هم د شپې مختلفو کيفياتو ته ورته او ورسره مشابه دي، والله أعلم.

فَمَا لَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٢٠﴾

پس څه دي دغو (انسانانو ته) چې ایمان نه راوړي.

تفسیر: چې وروسته له مرګه دوی د الله تعالی په طرف رجوع کوي، او هم یو سخت منزل په مخ کې دی چې هغه ته کافي توښه په کار ده.

وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْآنُ لَا يَسْجُدُونَ ﴿٢١﴾

او کله چې ولوست شي په دوی باندې قرآن؛ نو سجده نه کوي (لپاره د لوستلو یې).

تفسیر: که د هغوی عقل پخپله دا حالات نشو موندلی؛ نو لازم وو چې د قرآنکریم له بیان څخه یې ګټه اخیستلی، خو پر ته له دې د دوی حال دا دی چې د قرآن معجز بیان اوري، خو هیڅ د هغه په مخ کې د عاجزۍ او تذلّل اظهار نه کوي، تر دې چې مسلمانان د پاک الله تعالی دا آیات اوري سجده کوي، هغوی د همدې تشې سجدې توفیق هم نه لري.

بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا يُكَذِّبُونَ ﴿٢٢﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ ﴿٢٣﴾

بلکه هغه کسان چې کافران شوي دي په الله دروغ ګڼي (قرآن). او الله ته ښه معلوم دي هغه څه چې دوی یې پټوي په زړونو کې یې ساتي (له کفر او نفاق).

تفسیر: یعنې یواځې دا خبره نه ده چې هغوی د الله تعالی آیتونه اوري او سجده نه کوي، او انقیاد او تذلّل ته غاړه نه ږدي، بلکه زیات له دې نه د هغو آیتونو تکذیب پخپلو ژبو سره هم کوي، او د دوی له زړونو څخه چې په هغه کې د تکذیب، انکار، بغض، عناد او د حق د دښمنۍ ډېرې پرتې دي؛ الله تعالی ښه خبر دی.

فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿٢٤﴾

پس بشارت زېری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره (په آخرت کې).

تفسیر: یعنې زېری وکړئ په هغو باندې ! څه شی چې هغوی ګټي؛ د هغې نتیجه او مېوه به هرومرو هغوی ته رسېږي، او د هغوی دا کوششونه او زیارونه به هیڅ نه ابته (خراب) کیږي، او خامخا هغوی ته جزاء وررسیږي.

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٢٥﴾

مګر خو هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)؛ هغوی ته دی اجر ثواب بې نهایته چې خلاصی او کمی نه لري.

تفسیر: چې هیڅ کله پای (آخر) ته نه رسیږي، او تل دائم او قائم او لا ینقطع دی.

تمّت سورة الانشقاق بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ البُرُوجِ

«د (البروج) سورت مکّي دی، (۲۲) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۸۵) په نزول کې (۲۷) سورت دی، وروسته د (الشّمس) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالسَّمَآءِ ذَاتِ الْبُرُوْجِ ۝١

قسم په اسمان چې خاوند د برجونو دی.

تفسیر: له برجونو څخه مراد هغه دولس برجونه دي چې په یوه کال کې لمر په هغو کې ګرځي، یا د اسماني قلعې برجونه او برخې دي چې پرښتې پیرې په کې کوي، یا هغه لوی ستوري دي چې په لیدلو سره هم په اسمان کې ښکاري، والله أعلم.

وَالْيَوْمِ الْمَوْعُوْدِ ۝٢ وَشَاهِدٍ وَّمَشْهُوْدٍ ۝٣

او (قسم دی) په هغې ورځې وعدې کړی شوې (چې د قیامت ورځ ده). او (قسم دی) په هغې ورځې چې حاضرېږي (چې ورځ د جمعې ده)، او په هغې ورځې چې هغې ته ورحاضرېږي (خلق چې ورځ د عرفې ده).

تفسیر: خلق په ګردو ښارونو کې حاضرېږي د جمعې په ورځ، او د ګردې دنیا خلق سره یو ځای ټولېږي د عرفې په ورځ حج ته، نو څکه په روایتونو کې راغلي چې (شاهد) د جمعې ورځ ده، او (مشهود) د عرفې، برسېره پر دې د «شاهد» او «مشهود» په تفسیر کې ډېرې خبرې دي، خو أوفق الرّوایات همدا خبره ده، والله أعلم.

(ځواب د قسم محذوف دی، لکه چې پرې دغه راتلونکی آیت دلالت کوي چې):

قُتِلَ اَصْحٰبُ الْاُخْدُوْدِ ۝٤ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُوْدِ ۝٥

وژلی شوي دي خاوندان د کندې د خندقونو د اور (په څمکه کې) چې خاوند د بلېدلو وه (په ګوګړو او په ډېرو لرګیو او په سړیو سره).

تفسیر: یعنې مغضوب او ملعون شول هغه خلق چې لوی لوی خندقونه یې کنستلي او له اوره یې ډک کړي او ډېر لرګي یې په کې واچول او ښه یې سره کړل، د ﴿اَصْحٰبُ الْاُخْدُوْدِ﴾ څخه مراد څوک دي؟ مفسّرین څو واقعات وایي، خو هغه قصه چې په صحیح مسلم، جامع ترمذي، مسند احمد او نورو کې یاده شوې ده؛ لنډه یې دا ده چې: په پخوانیو پېړیو کې کوم کافر باچا وو، چې له هغه سره یو کوډګر وو، کله چې د کوډګر مرګ نژدې شو، له باچا څخه یې غوښتنه وکړه، چې یو هوښیار او پوه هلک دې ماته راکړ شي چې زه دا خپل علم ورزده کړم، او وروسته له ما څخه دا علم له لاسه ونه وځي، یو هلک د دې کار لپاره وټاکل شو، چې هره ورځ به یې د هغه کوډګر څخه سحر او کوډې زده کولې، د ده په لاره کې یو عیسایي راهب وو چې د هغې پېړۍ په اعتبار د هغه دین حق وو، دغه هلک له هغه سره هم خپل تګ راتګ شروع کړ، او په پټه یې د هغه راهب دین ومانه، او د هغه د تعلیم په وجه د ولایت او کرامت خاوند شو، یوه ورځ دې

هلك وليدل چې يو څيروونكى ځناور لكه څمرى يا پړانګ او نور لاره نيولې، او خلقو ته يې زياته وېره او پرېشاني وروړاندې كړې ده، هغه يوه تيږه په لاس كې واخيسته، او دعاء يې وكړه: «اى الها ! كه د راهب دين حق وي؛ نو ځما په دې ډبره دا ځناور مړ كړې»، دا يې وويل او تيږه يې وروغورځوله، چې د هغې له اغېزې او اثر هغه ځناور له كاره ووت، په خلقو كې يو لوى شورماشور جوړ شو چې دغه هلك ډېر علم لري، يوه ړانده چې دا انګازه او اوازه واورېده؛ ورځنې ويې غوښتل چې: «ځما ستر ګې را رڼې كړه !»، هلك وويل: «كوونكى زه نه يم، هغه ځمونږ الله تعالى دى، كه ته هغه منې او كفر پرېږدې؛ نو دعا درته كوم، هيله شته چې ستا ستر ګې رڼې شي»، لكه چې همداسې هم وشوه، ورو ورو دا خبرې ګردې باچا ته ورسېدلې، باچا ورته په قهر شو، هغه هلك، راهب او ړوند يې وغوښتل، او وروسته له څه خبرو او اترو څخه يې راهب او ړوند ووژل، د هلك په نسبت يې امر وركړ چې «هغه دې له يوه لوړ غره څخه په رغړولو وواژه شي»، خو د الله تعالى په قدرت هغه كسانو چې دا هلك يې د ځان سره پر غره باندې خېژولى وو؛ هغوى پخپله له غره څخه ورغړېدل، او دا هلك روغ رمټ بېرته راغى، بيا باچا امر وركړ چې: «هغه دې په سيند كې ډوب كړ شي !»، هلته هم دا پېښه وروړاندې شوه، او هغه ګرد سړي چې له ده سره تللي وو ټول په سيند كې ډوب شول، او دى جوړ او روغ بېرته راوګرځېد، په پاى (آخر) كې هلك باچا ته وويل: زه د ځان وژلو چل درښيم، تاسې ګرد سړي په يوه ميدان كې سره ټول كړئ، د هغوى پر مخ كې ما يو غرغره باندې وځړوئ، او د دې لفظ په ويلو سره پر ما باندې غشى ولئ: «بسم الله رب الغلام»، «د هغه الله په نامه چې د دې هلك رب او پالونكى دى»، كله چې باچا داسې وكړه او هغه هلك د خپل رب تر نامه ځار او مړ شو، او خلقو دا عجيبه واقعه وليدله؛ ټولو وويـل: «آمنّا بـربّ الغُلام، ايمان مو راووړ د دې هلك په رب او پالونكي باندې»، نو وزيرانو باچا ته وويل: «وګورئ چې د هغې خبرې په سبب چې دا ګردې چارې وشوې، اخرته هغه پېښه شوه، ړومبى به يو دوو سړيو ايمان راووړ، اوس خورا ډېر خلق مؤمنان شول»، باچا زيات په قهر شو او د ډېرو لويو او ژورو خندقونو د كنستلو امر يې وركړ، او هغه يې ښه له اوره څخه ډك كړل، او اعلان يې وكړ: «هر څوك چې ايمان لري، او د خپل ايمان څخه لاس نه وباسي؛ په همدې كندو كې دې وغورځاوه شي !»، تر دې چې ډېر سړي په اور كې وغورځول شول، خو هيڅ يوه هم د خپل ايمان څخه لاس وانه خيست، يوه ايمان داره ښځه راوستله شوه چې په تي پورې يې يو ماشوم وو، او ګمان كېده چې ښايي دا د خپل كوچني له وېرې ځان په اور كې ونه غورځوي، خو د الله تعالى په امر كوچني (ماشوم) داسې ورغـږ كړ: «أمّاه اصبري فإنك على الحق، مور كې ! صبر وكړه، چې ته په حق باندې يې !».

إِذۡ هُمۡ عَلَيۡهَا قُعُودٞ ۝٦ وَهُمۡ عَلَىٰ مَا يَفۡعَلُونَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ شُهُودٞ ۝٧

كله چې دوى په (غاړو) د اور ناست وو. او دوى په هغه چې كول به يې په مؤمنانو باندې حاضر وو (او پخپلو ستر ګو يې كتلې).

**تفسير:** يعنې باچا له خپلو وزيرانو او مشرانو سره يو ځاى د خندقونو په شاوخوا كې ناست وو، او په ډېره بېرحمۍ او غټ زړه سره يې د مؤمنانو د سوځولو ننداره كولې، او د دې بدبختانو هيڅ زړه په دوى باندې نه خوږېده.

وَمَا نَقَمُواْ مِنۡهُمۡ إِلَّآ أَن يُؤۡمِنُواْ بِٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡحَمِيدِ ۝٨ ٱلَّذِي لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِۚ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ شَهِيدٌ ۝٩

او عيب يې نه ليده له هغو (مسلمانانو) څخه مګر دا چې ايمان لرونكي وو په الله ډېر غالب قوي، ډېر ستايلي شوي باندې. هغه (الله) چې خاص ده لره ده باچايي كامل سلطنت د اسمانونو او د ځمكې (سره له اسمانونو او ځمكـې ملكًا خلقًا وعبيدًا)، او الله په هر شي باندې شاهد دى.

**تفسير:** يعنې د دې مؤمنانو قصور پرته له دې بل كوم شى نه وو چې هغوى به د كفر له ظلمت او تيارو څخه وتل، او پر يوه لوى او د هر راز ستاينې وړ الله تعالى باندې به يې ايمان راوړ، چې سلطنت او باچايي يې پر اسمان او ځمكه او پر هر شي باندې ده.

إِنَّ الَّذِينَ فَتَنُوا الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَتُوبُوا فَلَهُمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَلَهُمْ عَذَابُ الْحَرِيقِ ﴿۱۰﴾

بېشکه هغه کسان چې په فتنه کې يې غورځولي وي، ضرر يې رسولی وي ايمان لرونکيو سړيو ته او ايمان لرونکيو ښځو ته، بيا يې توبه نه وي ايستلې (او نه وي ګرځېدلي له کفره)؛ نو دوی ته دي (په آخرت کې) عذاب د دوزخ، او دي دوی ته عذاب د اور سوځوونکي.

تفسير: يعنې په «أصحاب الأخدود» پورې منحصر نه دی، هغه سړي چې داسې زيار (کوشش) کوي چې مؤمنان د الله تعالی له لارې څخه ګرځوي لکه چې د مکې کفّار يې کوي، او بيا له دې خپلو ناوړو حرکتونو څخه نه تائب کيږي؛ هغوی ته هم د دوزخ داسې عذاب تيار دی چې په هغه کې به ډېر زيات تکليفونه وي، او زيات تکليف به په داسې سوځولو کې وي چې د دوزخي زړه او وجود په کې سوځي.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْكَبِيرُ ﴿۱۱﴾

بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او کړي يې دي ښه (عملونه)، شته دوی ته جنّتونه چې بهيږي له لاندې د (ونو او ماڼيو د) هغو (څلور قسمه) ويالې، دا نجات دی مراد موندل لوی.

تفسير: يعنې د دې ځای له تکليفونو څخه نه ويريږي، وروستنی او لوی برى هغوی لره دی، چې د هغو په مخ کې د دې ځای عيش او تکليف دواړه هيڅ دي.

إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ ﴿۱۲﴾

بېشکه نيول د رب ستا خامخا ډېر سخت دي.

تفسير: نو څکه ظالمان او مجرمان نيسي، او خورا سختې سزاوې هغوی ته ورکوي.

إِنَّهُ هُوَ يُبْدِئُ وَيُعِيدُ ﴿۱۳﴾

بېشکه هم دغه (الله) دی ظاهروونکی (دبطش خپل په کفارو) اول ځلي او بيا ظاهروونکی دی (د بطش خپل په کفارو)دوهم ځلي په (آخرت کې يا) بېشکه همدغه (الله) دی پيدا کوونکی اول ځلي (له نطفې نه)، او بيا يې راګرځوونکی دی (دويم ځلي) پس له مرګه.

تفسير: يعنې اول ځلي د دنيا عذاب او دويم ځلي د آخرت ربړ (کذا في الموضح)، يا يې دا مطلب دی چې هغه اول ځلي سړی پيدا کوي، او دويم ځلي وروسته له مړينې به يې هم هغه بيا پيدا کوي، نو مجرمان دې نه تېروځي، چې هر کله چې څمونږ په مړينې سره نوم او نښې ورکې شي، بيا نو مونږ څرنګه ژوندي کيږو؟.

وَهُوَ الْغَفُورُ الْوَدُودُ ﴿۱۴﴾

او همدی دی ښه ښنونکی (د ګنهګارو مؤمنانو) محبّت کوونکی (له مؤمنانو سره).

تفسير: يعنې سره د ده د قهّارۍ او کلك نيولو له صفته د هغه د بخشش او د مهربانۍ هم هيڅ اندازه نشته دی، د حکم منونکيو بندګانو خطاوې او ګناهونه ښنبي، او د دوی عيبونه پټوي، او په راز راز لطف او کرم او عنايت او شفقت سره يې پالي.

ذُوالْعَرْشِ الْمَجِيْدُ ﴿۱۵﴾ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ ﴿۱۶﴾

مالک د عرش دی، لوی دی (په ذات او صفات خپلو کې). ډېر ښه کوونکی دی د هر هغه شي چې اراده يې وفرمايي.

**تفسير:** يعنې سم له خپل علم او حکمت سره د هر شي کول چې وغواړي؛ ژر تر ژره هغه کوي، هيچا لره حق نشته، چې د هغه د چارې مخه ونيسي.

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْجُنُوْدِ ﴿۱۷﴾ فِرْعَوْنَ وَثَمُوْدَ ﴿۱۸﴾

آيا راغلی دی تاته (ای محمده !) خبر د (هغو) لښکرو چې فرعونيان او ثموديان دي.

**تفسير:** تر يوه مدّت پورې د انعام ورونه د هغو فرعونيانو او ثموديانو په مخ کې وپرانستل شول، او له هرې خوا هغوی ته نعمتونه وروررسېدل، بيا د هغوی د کُفر او طغيان له سببه ډېر سخت کسات او انتقام له هغوی څخه واخيست شو.

بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِيْ تَكْذِيْبٍ ﴿۱۹﴾

بلکه هغه کسان چې کافران شوي دي (له قومه د تا) په دروغجن ګڼلو کې دي.

**تفسير:** يعنې کفّار له دې خبرې څخه څه عبرت او پند نه اخلي، او د الله تعالی له عذابه هيڅ نه ويرېږي، برسېره پر دې دا ګردې خبرې او پاک قرآن دروغ ګڼي، او تل په همدغو دروغو پسې ګرځي.

وَّاللّٰهُ مِنْ وَّرَآئِهِمْ مُّحِيْطٌ ﴿۲۰﴾

او الله په هر لوري د دې احاطه کوونکی دی (په علم او قدرت خپل سره، نو ترې نشي خلاصېدی هيڅ کله).

**تفسير:** يعنې له دې دروغ ګڼلو څخه هيڅ يوه ګټه هغوی ته نه رسيږي، خو د دې دروغ بللو جزاء هرومرو دوی ته رسيږي، دوی د الله تعالی له واک او قبضې څخه هيچېرې نشي وتلی، او نه له سزا څخه يې خپل ځانونه ژغورلی شي.

بَلْ هُوَ قُرْاٰنٌ مَّجِيْدٌ ﴿۲۱﴾

بلکه دا قرآن دی شانداره لوی.

**تفسير:** يعنې د پاک قرآن دروغ بلل پوره حماقت دی، قرآن مجيد داسې يو شی نه دی چې د دروغ بللو وړ وي، يا د ځو تنو ناپوهانو او احمقانو په دروغ ګڼلو سره د هغه په لويي او سترتوب کې به څه نقصان او لږوالی پېښ شي.

فِيْ لَوْحٍ مَّحْفُوْظٍ ﴿۲۲﴾

ليکلی شوی دی په لوح محفوظ کې.

**تفسير:** په داسې يو ځای کې چې هلته د هيڅډول تغيير او تبديل او لاس وهلو هيله نشته، او له هغه ځايه په ډېر حفاظت او اهتمام سره صاحب د وحي ته وررساوه شي.

تمّت سورة البُروج فلله الحمدُ والمنّة.

# سُورَةُ الطَّارِقِ

«د (الطارق) سورت مکي دی، (۱۷) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۸۶) په نزول کې (۳۶) سورت دی، وروسته د «البلد» له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالسَّمَآءِ وَالطَّارِقِ ﴿١﴾ وَمَآ أَدْرٰىكَ مَا الطَّارِقُ ﴿٢﴾ النَّجْمُ الثَّاقِبُ ﴿٣﴾ إِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَّمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ ﴿٤﴾ فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ ﴿٥﴾

قسم دی په اسمان او په راتلونکي د شپې. او څه پوه کړې ته چې څه دی راتلونکی د شپې. ستوری ځلېدونکی دی. چې نه دی هیڅ نفس مګر په هغه باندې څارونکی ساتونکی شته. نو ودې ګوري انسان چې (اصلاً) له څه شي څخه پیدا کړی شوی دی.

**تفسیر:** یعنې له انسانانو سره پرښتې اوسېږي، چې هغوی له بلاوو څخه ژغوري، یا یې عمل لیکي.

خُلِقَ مِنْ مَّآءٍ دَافِقٍ ﴿٦﴾

پیدا کړی شوی دی (انسان) له اوبو تویو وهونکیو څخه (په رحم کې).

**تفسیر:** یعنې له منیو څخه چې توپ وهلې وځي، یا له هسې اوبو څخه چې تولې کړی شوي وي په رحم کې.

يَخْرُجُ مِنْ بَيْنِ الصُّلْبِ وَالتَّرَآئِبِ ﴿٧﴾

هسې اوبه چې راوځي له منځه د شاوو (د سړیو)، او له هډوکیو د سینو (د ښځو څخه).

**تفسیر:** وایي چې د نارینه وو مني د دوی له شاګانو څخه، او د ښځو مني د هغو له ټټرو څخه راوځي.

إِنَّهُ عَلٰى رَجْعِهِ لَقَادِرٌ ﴿٨﴾

بېشکه دغه (الله) په بیا بېرته ژوندي ګرځولو د هغه (انسان) خامخا توانا قادر دی.

**تفسیر:** یعنې تر مړینې وروسته مو بیا الله تعالی ژوندي راولي (موضح القرآن)، حاصل یې دا چې له نُطفې څخه د انسان جوړول د هغه د دویم ځلي د بیا ژوندي کولو څخه څه زیات عجیبه ده، کله چې دا عجیب امر د هغه له قدرت کېدی شي؛ نو جائز نه دي تر هغه د یوه لږ عجیب څیز له وقوع څخه انکار وکړ شي، بلکه خامخا بیا یې هم پیدا کولی شي.

يَوْمَ تُبْلَى السَّرَآئِرُ ﴿٩﴾

په هغې ورځې کې چې ښکارولی به شي (په کې) پټ څیزونه.

تفسير: يعنې ګردې هغه پټې خبرې چې د دوی په زړونو کې وې؛ ښکاريږي، او د هيڅ يو جرم اخفاء به ممکنه نه وي.

فَمَا لَهُ مِنْ قُوَّةٍ وَلَا نَاصِرٍ ﴿١٠﴾

نو نه به وي دغه (انسان) ته هيڅ قوّت زور، او نه هيڅ ناصر مدد کوونکی.

تفسير: په دې وخت کې به نه مجرم د خپل زور او قوّت په مرسته خپله مدافعه کولی شي، نه به يې څوک حمايت او ملګرتوب وکړی شي، چې دی له سزا څخه وژغوري (بچ کړي).

وَالسَّمَاءِ ذَاتِ الرَّجْعِ ﴿١١﴾

قسم دی په اسمان خاوند د بېرته ګرځېدلو (چورلېدلو).

تفسير: يا قسم دی په وربځې باندې چې خاونده د باران ده، يا په اسمان او وربښت راوړونکې باندې.

وَالْأَرْضِ ذَاتِ الصَّدْعِ ﴿١٢﴾

او (قسم دی) په ځمکه خاونده د چاودلو (د سوري چې ترې راوځي اوبه او ګياه او نور).

تفسير: يعنې د ځمکې له چاودلو څخه ونې وابښه شينکي او نور د باندې راوځي، او ځواب د قسم دا دی:

إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ﴿١٣﴾ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ﴿١٤﴾

چې بېشکه دا قرآن خامخا وينا ده بېلوونکې (د حق او باطل) او نه دی دغه (قرآن) لوبې عبثې خبرې مزاح ټوکې.

تفسير: يعنې هغه خبرې چې قرآن يې د معاد په نسبت کوي؛ د لوبو او د ټوکو خبرې او د خندلو وړ اترې نه دي، بلکه د حق تعالی او د باطل او دروغو او رښتيا پرېکړه او فيصله ده، او بېشکه دغه يوه رښتيا خبره او يوه پای ته رسېدلې معامله ده، چې هرومرو راتلونکې ده.

إِنَّهُمْ يَكِيدُونَ كَيْدًا ﴿١٥﴾ وَأَكِيدُ كَيْدًا ﴿١٦﴾ فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا ﴿١٧﴾

بېشکه دوی کيد چل کوي په چل کولو سره. او چل به ورسره وکړم زه په چل کولو سره. پس مهلت ورکړه کافرانو ته، مهلت ورکړه دوی ته لږ (مدّت).

تفسير: دوی به د دين په خلاف راز راز چلونه او فريبونه کول، د خلکو په زړونو کې به يې شبهات اچول، خو د الله تعالی چل د دوی ټول چلونه برباد کړل، او الله تعالی ورته استدراج ورکولو تر دې چې عذابونه پرې نازل شول.

تمّت سورة الطارق بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الأَعْلَىٰ

«د (الأعلىٰ) سورت مكي دی، (۱۹) آيتونه يوه ركوع لري، په تلاوت كې (۸۷) په نزول كې (۸) سورت دی، وروسته د (التّكوير) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى ۝١

پاكي بيان كړه د نامه د رب خپل چې (له ټولو څخه) ډېر لوی او ښه غالب اوچت دی.

تفسير: په حديث كې راغلي دي: «كله چې دا آيت نازل شو؛ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: «اجعلوها في سجودكم» دا پخپلو سجدو كې ووايئ!، نو ځكه مونږ او ګرد مسلمانان پخپلو سجدو كې «سبحان ربي الأعلى» وايو.

الَّذِي خَلَقَ فَسَوَّى ۝٢

هغه (رب) چې پيدا يې كړل (ټول اشياء) نو اجزاء اعضاء يې برابر او بې نقصانه كړل.

تفسير: يعنې هر هغه څيز چې جوړ كړی يې دی؛ پوره له حكمت سره دی، او ښه يې جوړ كړی دی، د خواصو او صفاتو په اعتبار او د هغو ګټو لامله چې له هغه شي څخه مقصود دی، د هغه پيدايش يې په درجه د كمال سره رسولی دی، او داسې معتدل مزاج يې وربښلی دی، چې په هغه باندې ګرد په زړه پورې منافع او فوائد مرتّب كيدی شي.

وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَى ۝٣

او هغه (رب) چې اندازه يې كړل (خير او شر د هغوی)؛ نو لاره يې وروښوده (په طريقه د كسب سره).

تفسير: شاه عبد القادر (رحمة الله عليه) ليكي: «يعنې اول يې تقدير وليكه، بيا يې سم له هغه سره دنيا ته راوست، ګوا كې دنيا ته يې د راتلو لاره وروښوده».

وَالَّذِي أَخْرَجَ الْمَرْعَى ۝٤ فَجَعَلَهُ غُثَاءً أَحْوَى ۝٥

او هغه (رب) چې را ايستلې يې ده تازه ګيا له ځمكې څخه، پس ويې ګرځوله هغه (شنه ګياه) وچه توره.

تفسير: يعنې ړومبی تک شنه واښه او ورشو په ځمكه كې پيدا كوي، بيا ورو ورو هغه وچ او توروي، چې له هغو وچو وښو څخه هم حيواناتو ته خوراك وركاوه كيږي، او هم هغوی ته تر ډېر مدّت پورې ذخيره كاوه شي، تر دې چې وچ كښتونه هم وروسته له ريبلو څخه په كار راځي.

سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسٰٓى ۙ﴿٦﴾ اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ؕ

ژر ده چې وبه لولو مونږ (په ژبه د جبريل) په تا باندې (قرآن ای محمده !) بيا به يې ته نه هېروې.
مگر هغه چې اراده وفرمايي الله (د هېرولو يې له تا نه په منسوخ کېدلو).

تفسير: يعنې لکه چې مونږ پخپل تربيت سره هر څيز په تدريج د هغه مطلوب کمال ته رسولی دی؛ په تا باندې به هم ورو ورو کامل قرآن لولو، او داسې به يې در په ياد کړو چې د هغه هيڅ يوه برخه در څخه هېره نشي، پر ته له هغو آيتونو ځنې چې د هغو بالکل هېرول مقصود وي، چې دا هم يو راز نسخ ده.

اِنَّهٗ يَعْلَمُ الْجَهْرَ وَمَا يَخْفٰى ؕ﴿٧﴾

بېشکه دغه (الله) ته معلوم دي (هغه څه قول فعل چې دی) ښکاره او هغه څه چې پټ دي (يعنې ټول شيان).

تفسير: يعنې الله تعالی ته ستاسې پټ استعدادونه او ښکاره اعمال او احوال ټول ښه معلوم دي، او سم له هغو سره به له تاسې سره معامله کوي.

وَنُيَسِّرُكَ لِلْيُسْرٰى ۚ﴿٨﴾

او اسانوو د تا لپاره د شريعت اسانې (يا يادول د وحي، يا توفيق درکوو تاته لپاره د اسانې لارې د شريعت).

تفسير: يعنې د وحي ياد لرل به اسانېږي، او د الله تعالی د معرفت او عبادت او د مملکت او ملّت د سياست گردې (ټولې) چارې به در اسانې کړی شي، او ستا د برياليتوب له لارې څخه به گرد مشکلات لرې کړل شي.

فَذَكِّرْ اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى ؕ﴿٩﴾

پس ذکر پند ورکړه ته (ای محمده !) که فائده رسوي ذکر پند (يا پس پند ورکړه ته ای محمده !)، په تحقيق فائده رسوي ذکر پند مؤمنانو ته (يا پس پند ورکړه ته ای محمده !) که فائده رسوي ذکر پند (که فائده نه رسوي).

تفسير: يعنې کله چې الله تعالی پر تاسې باندې داسې انعام وفرمايه؛ نو تاسې هم نورو ته د الله تعالی احکام ورسوئ، او له خپل کمال څخه نور هم تکميل کړئ.

تنبيه: د ﴿اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى﴾ شرط د دې لپاره راوړی شوی دی، چې وعظ او تذکير هغه وخت کېدی شي چې د اورېدونکي له خوا د هغه د قبلولو گمان وشي، او د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د وعظ او تذکير منصب د هر سړي لپاره نه دی، هو تبليغ او انذار «يعنې د الله تعالی د احکامو تبليغ او د هغه له عذاب څخه وېرول» په هر سړي باندې لازم دي، تر څو چې د الله تعالی په بندگانو حجّت قائم وي، او د جهل او ناپوهی عذر پاتې نشي، دېته په عرف کې تذکير او وعظ نه وايي، بلکه تبليغ او دعوت وايي، ښايي چې ځينو مفسرينو هم له همدې جهته د دې آيت معنی لا په ښکاره الفاظو سره داسې ليکلي وي چې څو څو ځلې نصيحت وکړه که د يو ځلې پند فائده ونه کړي، او کېدای چې د ﴿اِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى﴾ شرط يواځې د تذکير د تأکيد لپاره وي، يعنې که تذکير چاته فائده ورسوي؛ نو تاته ښايي چې تذکير وکړې، دا خو منلې شوې خبره ده، چې په دنيا کې تذکير خامخا يو نه بل ته خو څه نفع او گټه رسوي، لکه چې الله تعالی فرمايلي

دي: ﴿وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَىٰ تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ نو معلّق كول د يوه امر په داسې يو څيز باندې چې د هغه وقوع ضروري وي؛ د هغه امر د تأكيد موجب شو.

سَيَذَّكَّرُ مَن يَخْشَىٰ ⁽¹⁰⁾

ژر ده چې پند به واخلي هغه څوک چې ويريږي له الله (ځکه چې دی فکر کوي په دې کې).

**تفسير:** په پوهولو باندې خو هغه پوهيږي او له نصيحت څخه هغه ګټه اخيستی شي چې په زړه کې يې لږ او ډېره د الله تعالی وېره وي، او د خپل پای او انجام لږ څه فکر وکړي.

وَيَتَجَنَّبُهَا الْأَشْقَى ⁽¹¹⁾ الَّذِي يَصْلَى النَّارَ الْكُبْرَىٰ ⁽¹²⁾

او ډډه کوي له دغه (پنده نصيحته ښه شقي کافر) لوی بدبخت چې نه يې قبلوي. هغه (لوی بدبخت) چې ننوځي به اور لوی ته (د دوزخ په آخرت کې).

**تفسير:** يعنې د هغه بد عمل او بد قسمت په برخه چې د دوزخ اور ليکلی دی؛ هغه کله پوهيږي، او له الله تعالی او له خپله انجامه کله ويريږي، چې د نصيحت په لوري متوجّه شي، يا د ښو خبرو په پوهېدلو کې کوښښ وکړي.

ثُمَّ لَا يَمُوتُ فِيهَا وَلَا يَحْيَىٰ ⁽¹³⁾

بيا به نه مري په هغه (اور) کې، او نه به ښه ژوندی وي.

**تفسير:** يعنې نه مرګ ورته راځي چې د هغه ربړونه پای ته رسوي، او نه يې د هوسايي ژوندون په برخه کيږي، هو! داسې يو ژوندون به ولري چې د هغه په مقابل کې به د مرګ غوښتنه کوي، له داسې ژوندون څخه مو دې الله تعالی وساتي.

قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّىٰ ⁽¹⁴⁾

په تحقيق بری موندلی په مراد رسېدلی دی هغه څوک چې پاک شوی دی (په ايمان سره له معاصيو).

**تفسير:** يعنې له ظاهري او باطني، حسي او معنوي نجاستونو څخه پاک شي، او خپل قلب او قالب يې په صحيحو عقائدو او فاضله اخلاقو او صالحه اعمالو او نافعه چارو سره ښايسته کړي.

وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّىٰ ⁽¹⁵⁾

او ياد کړي نوم د رب خپل (په تکبير سره) بيا يې لمونځ وکړ (چې ننبه د اسلام ده).

**تفسير:** يعنې پاک او صاف شوي، د تحريمې په تکبير کې يې د خپل پروردګار نوم واخيست، بيا يې لمونځ وکړ، ځينې اسلاف وايي چې: د تزکيې نه مراد زکات دی، چې دلته د هغه مطلب د فطر صدقه ده، او له ﴿وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ﴾ څخه د اختر تکبيرونه مراد دي، او په ﴿فَصَلَّىٰ﴾ کې د اختر د لمانځه ذکر دی، يعنې د اختر په ورځ کې يې اول «صدقة الفطر» سرسايه بيا تکبيرونه بيا لمونځ وکړ، ښکاره خو هغه ړومبنی وينا ده.

بَلۡ تُؤۡثِرُوۡنَ الۡحَيٰوةَ الدُّنۡيَا ۝۱۶ وَالۡاٰخِرَةُ خَيۡرٌ وَّ اَبۡقٰى ۝۱۷

بلکه تاسې غوره کوئ ژوندون لږ خسيس په آخرت باندې ای منکرانو. حال دا چې آخرت خير غوره ده (له دنيا نه) او (تل تر تله ښه) باقي دی.

تفسير: يعني دا ښېګڼه تاسې ته ای منکرانو څنګه حاصلیږي، چې تاسې هيڅ د آخرت فکر نه کوئ، بلکه د دنيا ژوندون او د دې ځای، عيش، عشرت، هوسايي او چړچې د اعتقاد يا د عمل له مخې په اخروي چارو باندې زياتې بولئ، حال دا دی چې دنيا حقيره او فاني او آخرت په زرهاوو ځلې له هغې څخه ښه او پايه دار دی، بيا د تعجّب ځای دا دی: هغه ځيز چې د (کم) او (کيف) او نورو له پلوه بهتر دی، هغه څنګه پرېښودی شي؟ او چټې او خرابې چارې ولې غوره کولی شي؟.

اِنَّ هٰذَا لَفِى الصُّحُفِ الۡاُوۡلٰى ۝۱۸ صُحُفِ اِبۡرٰهِيۡمَ وَمُوۡسٰى ۝۱۹

بېشکه دا خبرې خامخا په صحيفو ړومبنيو کې دي. چې صحيفې د ابراهيم او (د) موسی دي.

تفسير: يعني دا مضمون چې له ﴿قَدۡ اَفۡلَحَ مَنۡ تَزَكّٰى﴾ څخه تر ﴿وَالۡاٰخِرَةُ خَيۡرٌ وَّاَبۡقٰى﴾ پورې دی په پخوانيو کتابونو کې هم ليکلی شوی دی، او هيڅ وخت منسوخ شوی او بدل شوی نه دی، نو په دې اعتبار لا ټينګ او مؤکد شو.

تمّت سورة الأعلى بفضل الله تعالى ومنّه وكرَمه.



# سُورَةُ الغَاشِيَةِ

«د (الغاشية) سورت مکّي دی، (۲۶) آيته يوه رکوع لري، په تلاوت کې (۸۸) په نزول کې (۶۸) سورت دی، د «الذاريات» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

هَلْ اَتٰىكَ حَدِيْثُ الْغَاشِيَةِ ①

په تحقيق راغلی دی تاته (ای محمده !) خبر د پټوونکې (د خلقو په سختيو خپلو سره چې ورځ د قيامت ده).

تفسير: يعنې هغه خبره د اورېدلو وړ ده چې پټوونکې د خلقو ده په هيبتونو او په سختيو خپلو کې.

تنبيه: (له غاشيې پټوونکې) څخه مراد قيامت دی، چې پر ګردو مخلوقاتو چاپېرېږي، او د هغه په اثر به پر ګردو مخلوقاتو باندې محيط وي.

وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ ② عَامِلَةٌ نَّاصِبَةٌ ③

ځينې مخونه به په دغه ورځ (د قيامت) کې وېرېدونکي او ذليله وي. تکليف ايستونکي رنځ راښکونکي به وي.

تفسير: يعنې په آخرت کې به ربړ (تکليف) ايستونکي د ربړ ګاللو په سبب ستړي او ستومانېږي.

تَصْلٰى نَارًا حَامِيَةً ④ تُسْقٰى مِنْ عَيْنٍ اٰنِيَةٍ ⑤

ننوځي به اور ډېر ګرم ته. ورڅښل کېږي به پرې له چينې ډېرې ګرمې څخه (په وخت د غلبې د تندې کې).

تفسير: يعنې کله چې د دوزخ تودوخې د هغوی په باطن کې سخته ګرمي پيدا کړي؛ دوی بې اختياره «تږي وږي يو» نارې وهي، چې ښايي د اوبو له څښلو څخه به د دوی دا تنده ماته شي، دلته به د يوې يشېدونکې چينې له اوبو څخه دوی ته اوبه ورکولی کېږي، چې د هغو له څښلو څخه به د دوی شونډې ورتېږي، او کولمې به يې ټوټې ټوټې لوېږي، او بيا به ژر جوړېږي، او همداسې به تل په عذاب ککړ وي (العياذ بالله).

لَيْسَ لَهُمْ طَعَامٌ اِلَّا مِنْ ضَرِيْعٍ ⑥

نه به وي دوی ته طعام خواړه مګر له اغزي لرونکې ترخې ونې څخه.

تفسير: «ضريع» يوه اغزي لرونکې ونه ده په دوزخ کې، چې پخپل تريخوالي کې له شبرق يا له مصبر څخه زيات بد خونده او مرداره او په ګرمۍ کې له اوره توده ده، کله چې دوزخيان له لوږې څخه په عذاب شي او «وږي يو ! وږي يو» نارې وهي؛ نو دا «ضريع» يا «ايلوي» يا «شبرق» يا «مصبر» دوی ته ورکول کېږي.

لَّا يُسْمِنُ وَلَا يُغْنِي مِن جُوعٍ ۝٧

چې نه به څربوي بدن (د دوزخي هغه ضريع)، او نه دفع کوي هيڅ لوږه (له دوی نه هغه ضريع).

تفسير: له خوړلو څخه يواځې خوند او لذّت اخيستل يا د ځان څربول يا د لوږې لرې کول يا بل مقصد وي، د (ضريع) له خوړلو څخه دا خبرې هيڅ نه حاصليږي، د خوند او لذّت نشتوالی خو د هغه له نامه څخه ښکاره دی، د نورو دوو فائدو نفـي تصريحًا په دې آيت کې ذکر شوه، لنډه يې دا چې هيڅ يو لذيذ او مرغوب طعام او خواږه هغوی هلته نه مومي.

تر دې ځايه پورې د دوزخيانو د حال بيان وو، اوس د دې په مقابل کې الله أکرمَ شأنُهُ وأعظمَ برهانُهُ د جنّتيانو ذکر داسې فرمايي:

وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَّاعِمَةٌ ۝٨ لِّسَعْيِهَا رَاضِيَةٌ ۝٩

ځينې مخونه به په دغې ورځې کې ښايسته او تازه وي. پخپل کوښښ باندې (چې يې کړی وي په دنيا کې) راضي خوشاله به وي (په آخرت کې).

تفسير: يعنې خوښ به وي چې د دوی زيار په ځای شو، او د خپلو رېړو (تکاليفو) او د زحمتونو ګټه يې په ښه ډول سره بيامونده.

فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ۝١٠ لَّا تَسْمَعُ فِيهَا لَاغِيَةً ۝١١

په جنت لوړ (اوچت) شانداره کې به وي. نه به اوري په هغه (جنّت) کې کومه چټي خبره.

تفسير: يعنې په جنّت کې هيڅوک چټي او اپلتې خبرې نه اوري، د کنځلو او د رذالت هيڅ يوه ننبه هلته نه ليدله کيږي.

فِيهَا عَيْنٌ جَارِيَةٌ ۝١٢

په دغه (جنّت) کې چينه ده جاري بهيدونکې.

تفسير: يعنې په جنّت کې يوه عجيبه ډول چينه ده، او ځينو مفسّرينو دا «عين» پر جنس باندې حمل کړې ده، او وايي چې په جنت کې ډېرې چينې بهيږي.

فِيهَا سُرُرٌ مَّرْفُوعَةٌ ۝١٣ وَأَكْوَابٌ مَّوْضُوعَةٌ ۝١٤

په دغه (جنّت) کې دي تختونه (لپاره د کېناستلو د جنّتيانو) لوړ (اوچت) عاليشان. او جامونه اېښودلي شوي (په اندازه د څښونکيو خپلو).

تفسير: کله چې يې وغواړي چې ويې څښي؛ هيڅ ډيل او ځنډ به نه پکې کيږي.

وَنَمَارِقُ مَصْفُوفَةٌ ۝١٥

او (په دغه جنّت کې دي) بالښتونه اېښود شوي په درجه څنګ په څنګ (جنّتيانو ته).

**تفسير:** يعنې په ډېر نزاکت او لطافت او په ښه قرينه او ترتيب سره به غوړېدلي وي، لوېې تکيې او بالښتونه به ځای په ځای کې ايښود شوي وي، چې کله به په يوه کيني، او کله به په نورو تکيه وهي.

وَزَرَابِيُّ مَبْثُوثَةٌ ﴿١٦﴾

او (په دغه جنّت کې دي) فرشونه فاخره غوړولي شوي.

**تفسير:** تر څو هر کله او په هر ځای کې چې د جنّتيانو زړه غواړي؛ هلته آرام او هوسايي او له يوه ځايه د بل ځای د تګ راتګ او وړلو او راوړلو تکليف ورته نه وي.

أَفَلَا يَنظُرُونَ إِلَى الْإِبِلِ كَيْفَ خُلِقَتْ ﴿١٧﴾

نو آيا پس نه ګوري (منکران په نظر د عبرت سره) اوښانو ته چې څرنګه پيدا کړی شوی دی؟.

**تفسير:** چې د نورو حيواناتو او څاروو په نسبت د اوښ هيئت او خاصيت دواړه خورا عجيب او غريب دی.

وَإِلَى السَّمَاءِ كَيْفَ رُفِعَتْ ﴿١٨﴾

او (آيا نه ګوري منکران) اسمان ته چې څرنګه بلند اوچت کړی شوی دی (بې له ستنو).

**تفسير:** يعنې اسمان پرته له ښکاره ستنې او پايې او رسۍ او نورو څخه پورته شوی دی.

وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ ﴿١٩﴾

او (آيا نه ګوري منکران) غرونو ته چې څرنګه درولي شوي دي.

**تفسير:** چې د يوې ذرې په اندازه له خپلو ځايونو څخه نه خوځيږي، او دغه غرونه د الله تعالی په قدرت سره له دغومره لويوالي پخپلو ځايونو کې ټينګ ولاړ دي.

وَإِلَى الْأَرْضِ كَيْفَ سُطِحَتْ ﴿٢٠﴾

او (آيا نه ګوري منکران) ځمکې ته چې څرنګه غوړولې شوې ده.

**تفسير:** چې ځمکه د خپل لويوالي په سبب د خپل کروي شکلتوبه بيا هم مسطّحه ښکاري، نو ځکه پرې هستوګنه اوسېدل اسان دي، د ابن کثير (رحمه الله) په وينا: د دې شيانو تخصيص ځکه شوی دی، چې د عربو خلق زياتره په بيدياوو ځنګلونو کې ګرځېدل، او په دې وخت کې به زياتره د هغوی تر سترګو لاندې همدا څلور شيان وو، د سورلۍ اوښ، پاس اسمان، ښکته ځمکه، شاوخوا غرونه، نو د دې لامله په همدې علاماتو او نښو باندې د فکر وهلو او جاج کولو ارشاد شوی دی.

فَذَكِّرْ إِنَّمَا أَنتَ مُذَكِّرٌ ﴿٢١﴾ لَّسْتَ عَلَيْهِم بِمُصَيْطِرٍ ﴿٢٢﴾

نو ته يې وپوهوه (پند ورکړه ای محمده ! دوی ته)، بېشکه همدا ته پند ورکوونکی پوهوونکی وېروونکی يې. نه يې ته پر دوی باندې مسلّط کړی شوی (چې په زور يې مسلمانان کړې).

تفسير: يعنې کله چې دا خلق سره د واضحه دلائلو له قيام څخه غور نه کوي؛ نو تاسې د هغوی زيات فکر مه کوئ، ځکه چې تاسې يوائې د پند ورکولو لپاره ليږلي شوي يئ، که دوی نه پوهيږي؛ نو تاسې په هغوی باندې محصل او داروغه ټاکلي شوي نه يئ، چې په زور او زياتی سره يې په هغوی باندې ومنئ، او د هغوی زړونه په بل لوري واوړي، دا کار د مقلّب القلوب دی، او دا په جهاد باندې له امر نه مخکې وو.

إِلَّا مَن تَوَلَّىٰ وَكَفَرَ ﴿٢٣﴾ فَيُعَذِّبُهُ اللَّهُ الْعَذَابَ الْأَكْبَرَ ﴿٢٤﴾ إِنَّ إِلَيْنَا إِيَابَهُمْ ﴿٢٥﴾ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا
حِسَابَهُم ﴿٢٦﴾

مګر هغه څوک چې وګرځېد (له ايمانه) او کافر شو. نو په عذابوي به يې الله په عذاب لوی (د آخرت) سره. بېشکه خاص مونږ ته دی بېرته راتګ د دوی (په قيامت کې). بيا بېشکه څمونږ پر غاړه دی حساب د دوی (نو سم له اعمالو به جزاء مومي).

تفسير: يعنې هغه کسان چې د الله تعالى له طاعت څخه مخ اړوي، او د هغه له آيتونو څخه انکار کوي؛ هغه د آخرت په لوی عذاب او د الله تعالى له سختې سزا څخه ځان نشي ژغورلی، يقيناً هغوی يوه ورځ څمونږ په لوري راتلونکي دي، او مونږ به له هغوی څخه د يوې يوې ذرې حساب اخلو، لنډه دا چې تاسې خپله فريضه اداء کړئ، او د هغوی مستقبل مونږ ته وسپارئ !.

تمّت سورة الغاشية بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الفَجرِ

«د (الفجر) سورت مكّي دى، (٣٠) آيته يوه ركوع لري، په تلاوت كې (٨٩) په نزول كې (١٠) سورت دى، وروسته د (اللّيل) له سورته نازل شوى دى».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

وَالْفَجْرِ ۝١ وَلَيَالٍ عَشْرٍ ۝٢ وَّالشَّفْعِ وَالْوَتْرِ ۝٣ وَالَّيْلِ إِذَا يَسْرِ ۝٤

قسم دى په فجر صباح باندې. او په شپو لسو باندې. او په جفت باندې، (او قسم دى په) طاق باندې. او په شپه باندې كله چې ځي راځي توره تياره كيږي.

**تفسير:** د صبا نه مراد عام صبا دى، او يا د لوى اختر د ورځې صبايي، او د لسو شپو څخه مراد د لوى اختر لس ورځې دي، او د جفت څخه مراد د لوى اختر ورځ او د طاق څخه د عرفې ورځ مراد ده، او د دې څيزونو په مراد كې نور اقوال هم شته، چې په ذكر كولو يې خبره اوږديږي، خو دا قول په كې راجح معلوميږي، والله أعلم.

هَلْ فِي ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِي حِجْرٍ ۝٥

آيا شته په دې قسمونو كې لوى قسم پوره خاوند د عقل ته (چې اعتبار پرې وكړي؟ هو ! شته !).

**تفسير:** يعنې دا قسمونه معمولي نه دي، ډېر معتبر او مهتم بالشان دي، پوهان پوهيږي چې د كلام د تأكيد لپاره په دې كې يو ځانته عظمت او خاص وقعت مونده كيږي، او محذوف ځواب د قسم دا دى: يعنې خامخا به په عذاب كړى شئ تاسو اى منكرانو ! وروسته له دې نه، الله أجلّ وأعظمَ برهانُهُ د ځينو منكرينو د تعذيب ذكر فرمايي چې:

أَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِعَادٍ ۝٦ إِرَمَ

آيا نه وينې نه يې خبر ته (اى محمده !) چې څه كړي دي رب ستا (له قبيلې د اول) د عاديانو سره چې ارم وو.

**تفسير:** «عاد» د داسې يوه سړي نوم دى چې د هغه قوم د ده په نامه باندې ياديږي، د ده په نيكونو كې يو سړى (ارم) نومېده، د ده په لوري له نسبت كولو څخه ښايي داسې اشاره وي چې دلته له (عاد) څخه اول (عاد) مراد دي، او دويم (عاد) نه دي، ځينې وايي چې د عاد د قوم شاهي كورنى ته «ارم» ويل كېدل، والله أعلم.

ذَاتِ الْعِمَادِ ۝٧

چې خاوندان د قوّت قامتونو لويو وو (يا خاوندان د لويو ستونو وو).

تفسير: يعنې ستنې يې ودرولې، او لوی لوی عمارتونه يې جوړ کړل، يا يې دا مطلب دی چې ډېر ځلې په سير او سياحت مشغول وو، او په لويو وځکېکو او ستنو باندې يې کېږدۍ يا خيمې درولې، د ځينو په نزد له ﴿ذَاتِ الْعِمَادِ﴾ څخه مراد د هغوی اوږده قدمونه، لوی قدونه او جګې ونې او نور لوړ شيان دي، چې په تشبيه سره ويلې شوي دي.

الَّتِي لَمْ يُخْلَقْ مِثْلُهَا فِي الْبِلَادِ ﴿٨﴾

هسې (قبيله) چې نه وه پيدا کړی شوې مثل د هغې (په قوّت قدرت کې) په ټولو ښارونو کې.

تفسير: يعنې په هغه وخت کې د هغه قوم غوندې بل کوم قوم هسې مضبوط او طاقتور نه وو، يا دا چې د هغوی عمارتونه بې سارې او مانې بېمثالې وې.

وَثَمُودَ الَّذِينَ جَابُوا الصَّخْرَ بِالْوَادِ ﴿٩﴾

او (څه کړي وو رب د تا له) ثموديانو هغو سره چې کنستلې غوځې کړې يې وې لويې تيږې (ګټې) په کنده کې.

تفسير: «وادي القرى» د هغه ځای نوم دی چې هلته تيږې توږلې کېدې، او بيا يې له هغو څخه ډېرې محفوظې او مضبوطې مانۍ جوړولې.

وَفِرْعَوْنَ ذِي الْأَوْتَادِ ﴿١٠﴾

او (څه کړي وو رب د تا له) فرعون سره چې خاوند د (ډېرو لښکرو) ميخونو وو.

تفسير: يعنې لوی لښکر لرونکی چې د هغه د فوځي ضرورياتو لپاره به ډېر زيات ميخونه په کار کېدل، يا دا چې خلقو ته به يې په ميخونو سزا ورکوله.

الَّذِينَ طَغَوْا فِي الْبِلَادِ ﴿١١﴾ فَأَكْثَرُوا فِيهَا الْفَسَادَ ﴿١٢﴾ فَصَبَّ عَلَيْهِمْ رَبُّكَ سَوْطَ عَذَابٍ ﴿١٣﴾

هسې (سړي وو دوی ګرد) چې سرکشي يې کړې وه په ښارونو کې. بيا يې ډېر کړی وو په هغو (ښارونو) کې فساد ورانی. نو نازله کړه پر دوی باندې رب ستا (قمچينه) متروکه د عذاب.

تفسير: يعنې هغه باغي قومونه د عيش، دولت، زور او قوّت په نشو کې مست شوي په ملکونو کې يې ښه شورماشور، جنګ جنجال، فتنه فساد جوړ کړ، زيات شرراتونه يې وکړل، نو وروسته له دې نه چې د هغوی د کفر، تکبّر، جور، ستم کنډول ډک شو، او مهلت او د ټال مدّت يې پوره شو؛ ناڅاپه قهّار الله د خپل عذاب قمچينې او متروکې پرې وورولې، او د هغوی ګرد قوّت او لويي يې له خاورو سره برابره کړه، او د دوی سازوسامان يو هم په کار نشو.

إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ ﴿١٤﴾

بېشکه رب ستا په ځای د انتظار کې دی (اعمالو د دوی لره چې سم د دوی له عملونو سره جزاء هغوی ته ورکړي).

تفسير: يعنې الله تعالی خلک څاري، د دوی ويناګانې اوري، او په حال يې خبر دی، هر يو ته به د عمل بدله ورکول کيږي، او ټول مخلوقات به ده ته وړاندې کيږي، په خپل عدل به پرې فيصله کوي.

فَاَمَّا الۡاِنۡسَانُ اِذَا مَا ابۡتَلٰىهُ رَبُّهٗ فَاَكۡرَمَهٗ وَنَعَّمَهٗ ۙ۬ فَيَقُوۡلُ رَبِّىۡۤ اَكۡرَمَنِ ؕ﴿۱۵﴾

پس هر چې انسان بني آدم (دی) کله چې وازمويي دی (په راحت سره) رب د ده، پس عزّت ورکړي ده ته او نعمت ورکړي ده ته؛ نو وايي رب ځما عزّت راکړه ماته.

تفسير: يعنې زه د همدې خبرې وړ (لايق) وم، نو ځکه يې عزّت راکړ.

وَاَمَّاۤ اِذَا مَا ابۡتَلٰىهُ فَقَدَرَ عَلَيۡهِ رِزۡقَهٗ ۙ۬ فَيَقُوۡلُ رَبِّىۡۤ اَهَانَنِ ۚ﴿۱۶﴾

او کله چې (الله) وازمويه دی (په زحمت سره) پس تنګ کړي پر ده باندې رزق روزي د ده؛ نو وايي رب ځما سپک کړم زه.

تفسير: يعنې ځما هيڅ قدر يې ونه کړ، لنډه يې دا چې د هغوی سترګې دنيوي ژوندون او حاضره حالت ته دي، او يواځې د دنيا همدا موجوده راحت او تکليف د خپل عزّت او ذلّت معيار ګڼي، او په دې نه پوهيږي چې په همدې دواړو حالتونو کې د هغه امتحان او ازموينه مقصد ده، نعمت درکوي تر څو وګوري چې تاسې يې شکر وباسئ؟ او ربړ درپېښوي چې آيا تاسې خپل صبر او رضا پکښې ښکاره کولی شئ؟.

(نو الله أکرم شأنُهُ وأعظم برهانُه) داسې فرمايي:

كَلَّا بَلۡ لَّا تُكۡرِمُوۡنَ الۡيَتِيۡمَ ۙ﴿۱۷﴾

داسې دې نه وايي، بلکه تاسې اکرام احسان نه کوئ پر يتيم پلار مړي باندې.

تفسير: يعنې د الله جل جلاله په دربار کې به ستاسې څنګه عزت وي؟ چې تاسې د بېکسانو او يتيمانو د زړه ساتنه او عزّت نه کوئ، يعنې نه دی دا عزت او ذلت په ډېروالي او لږوالي د مال سره، ځکه چې اکرام په طاعت او اهانت په معصيت سره دی، بلکه فعل ستاسې ډېر قبيح دی له قول ستاسو نه، ځکه چې اکرام درسره کړی الله په غناء سره، او تاسو نه کوئ احسان له يتيمانو سره.

وَلَا تَحٰٓضُّوۡنَ عَلٰى طَعَامِ الۡمِسۡكِيۡنِ ۙ﴿۱۸﴾

او نه تېزوئ تاسې يو بل په طعام (خواړه ورکولو د محتاجانو) د مسکينانو.

تفسير: يعنې له خپل مال او شتو څخه د مسکينانو لاس نيوی، څه چې چېرې نورو ته هم داسې يو شی نه وايئ چې د ده په ويلو او تېزولو سره هغوی له وږې او بې وځلې سره امداد او معاونت او مرسته وکړي.

وَتَاۡكُلُوۡنَ التُّرَاثَ اَكۡلًا لَّمًّا ۙ﴿۱۹﴾

او خورئ تاسې مال د ميراث په خوړلو ټولو ډېر سره.

تفسير: يعنې د مړي په پنګه او ميراث اخيستلو کې د حلال او حرام او حق او باطل څه تميز نشته، څه يې چې په لاس ورشي؛ خوري يې، او پخپل دغه عمل سره دا رابنيئ که د مسکينانو حقوق تلف کيږي؛ تلف دې شي.

وَّتُحِبُّوۡنَ الۡمَالَ حُبًّا جَمًّا ؕ﴿۲۰﴾

او مينه کوئ تاسې له مال سره په مينې ډېرې سره.

تفسیر: یعني رښتیا خبره دا ده چې ستاسې زړونه د مال د حرص او محبت سره ډک دي، او بس همدا غواړئ چې په څه ډول مو مال په لاس راشي، او یو پول مو هم په یوه ښه کار کې له لاسه ونه وځي، که مخ کې هر څه راپېښیږي؛ راپېښ دې شي، او له مال او دولت سره دومره مینه او محبّت چې هغه د خپل مقصود کعبه ګرځوئ، او د اسلامیت په لاره کې یې خرڅ نه کړئ، دا خو یوازې د کافرانو دود (رواج) او دستور دی.

كَلَّآ إِذَا دُكَّتِ ٱلْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا ﴿٢١﴾

نه ده داسې، او مه کوئ (دغسې بد کارونه، یا حقه ده) کله چې وټکوله ماته شي ځمکه په ټکولو ماتولو سختو سره.

تفسیر: ګردې غونډۍ او غرونه به واړه واړه شي، ځمکه به بالکل صافه او هوار میدا شي.

وَجَآءَ رَبُّكَ

او راشي رب ستا.

تفسیر: یعنې رابه شي رب ستا (د بندګانو د فیصلې لپاره) هغسې چې د هغه له شان سره ښایي، او وړ (لایق) وي.

وَٱلْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا ﴿٢٢﴾

او راشي پرښتې صف صف (قطار قطار چاپېر بدونکې پرانسانانو او پیریانو باندې).

تفسیر: یعنې د محشر په میدان کې، یا راځي هلته انتظاماتو لره پوړ په پوړ صف په صف.

وَجِاْىٓءَ يَوْمَئِذٍۭ بِجَهَنَّمَ ۚ

او رابه وست شي په هغې ورځې کې دوزخ.

تفسیر: یعنې په لکونو پرښتې به هغه له خپله ځایه ښخه په راښکودلو سره د محشریانو په مخ کې راحاضر کړي.

يَوْمَئِذٍ يَتَذَكَّرُ ٱلْإِنسَٰنُ وَأَنَّىٰ لَهُ ٱلذِّكْرَىٰ ﴿٢٣﴾

په دغې ورځې کې به پند واخلي یاد کړي انسان (خپل افراط) او څه ګټه فائده به نه وررسوي ده ته په دغه وخت کې پند اخیستل (بلکه هیڅ فائده نه رسوي).

تفسیر: یعنې هلته به وپوهیږي چې په سختې غلطۍ او غفلت کې وم، مګر هغه پوهېدل به څه په کار ورشي؟ ځکه چې د پوهېدلو او سنجولو وخت به له لاس ښخه وتلی وي، هغه چارې چې په دار العمل کې کېدې، په دار الجزاء کې کله کېدی شي؟.

يَقُولُ يَٰلَيْتَنِى قَدَّمْتُ لِحَيَاتِى ﴿٢٤﴾

وایي: ښکه به ښه وو ما لره که څه مې مخکې لیږلي وی لپاره د (دې) ژوند (د آخرت) خپل (یا پخپل ژوندانه کې).

تفسیر: یعنې افسوس د دنیا په ژوندون کې مې څه نیکي نه ده کړې چې هغه له ما ښخه په مخکې دلته رارسیدلي وی، او اوس به مې په دغه اخروي ژوندون کې په کار راتلی، همداسې تش لاس را راهي شوی

یم، کاشکې د حسناتو کومه ذخیره مې له مخه لیږلې وی چې دلته ځما پاڼکه او ذخیره ګرځېدلې او په کار به مې راتلی !.

فَيَوْمَئِذٍ لَّا يُعَذِّبُ عَذَابَهُۥٓ أَحَدٌ ﴿٢٥﴾ وَلَا يُوثِقُ وَثَاقَهُۥٓ أَحَدٌ ﴿٢٦﴾

نو په دغې ورځې کې به نه په عذابوي (په مثل) د عذاب د دغه (الله) هیڅوک. او نه به قیدول کوي (په مثل) د قیدولو د دغه (الله) هیڅوک.

**تفسیر:** یعنې الله تعالی به په دغې ورځې کې مجرمانو ته داسې سختې سزاوې ورکوي، او په داسې سختې بندیخانې کې به اچول کیږي چې د هغې ساری او مثال د بل مجرم په حق کې متصوّر نه دی.

يَٰٓأَيَّتُهَا ٱلنَّفْسُ ٱلْمُطْمَئِنَّةُ ﴿٢٧﴾ ٱرْجِعِىٓ إِلَىٰ رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ﴿٢٨﴾ فَٱدْخُلِى فِى
عِبَٰدِى ﴿٢٩﴾ وَٱدْخُلِى جَنَّتِى ﴿٣٠﴾

ای نفسه آرام نیوونکیه (په ذکر ځما شاکر په نعمت ځما صابر په زحمت ځما) !. وګرځه (له دنیا نه) په طرف د رب خپل حال دا چې راضي خوښ به یې ته (له الله څخه او الله) راضي خوښ (به وي له تا څخه). بیا ننوځه په (نېکانو) بندګانو ځما کې. او ننوځه په جنّت ځما کې (سره له نورو مقرّبانو).

**تفسیر:** اول د مجرمانو او ظالمانو حال بیان شو، اوس د هغه په مقابل کې د هغو خلقو انجام ښودل کیږي چې د هغوی زړونو ته د الله تعالی د یادولو څخه آرام خوند او راحت په برخه کیږي، هغوی ته به په حشر کې ویل کیږي: آراحت نیوونکیه نفسه ! په الله تعالی باندې، په هغه حقیقي محبوب باندې چې تا خپل زړه تړلی وو، اوس نو له هر راز جګړو او اندېښنو څخه ګوښه اوسه !، او تل په خوښۍ او هوسایۍ سره خپل ژوند تېروه !، او هغه نژدې ځای ته ورشه چې خاصو بندګانو ته ټاکلی شوی دی، او ځما د مخصوصو بندګانو په ډله کې ځان ګډ او داخل کړه، او په عالیشان جنّت کې هستوګنه کړه.

**تنبیه:** د مطمئنه نفس، د امّاره نفس، د لوّامه نفس تحقیق دې د «القیامة» د سورت په شروع کې وکتل شي !.

تمّت سورة الفجر بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ البَلَدِ

«د (البلد) سورت مکي دی، شل آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۰) په نزول کې (۳۵) سورت دی، وروسته د (ق) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

لَآ أُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝١ وَأَنتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ ۝٢

قسم خورم په دې بلد ښار باندې چې (مکّه ده). حال دا چې خاص ته به خلاص شې (په تا به څه قيد ممانعت نه وي) په دې ښار کې (چې هر څوك وژنې يا يې پرېږدې په يو ساعت د ورځې کې).

تفسير: په مکې معظمې کې هر سړی له جنګ کولو څخه ممنوع دی، خو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يو وارې د مکې په فتحې کې دا ممانعت پاتې نشو، او هر چا چې له هغوی سره جنګ کاوه؛ د هغه وژل به روا کېده، تر دې چې لوی مجرمان د کعبې شريفې د ډېوالونو تر څنګ هم ووژل شول، نو وروسته له دې ورځې څخه بيا همغه ممانعت تر نن پورې ببر ته قائم شو.

تنبيه: ځينو د ﴿وَأَنتَ حِلٌّ بِهٰذَا الْبَلَدِ﴾ معنی «وأنت نازلٌ» اخيستې ده، يعنې زه قسم خورم په هغه ښار باندې په هغه حال کې ته پکې پيدا شوی يې، او په کې هستوګنه لرې.

وَوَالِدٍ وَمَا وَلَدَ ۝٣

او قسم دی په پلار او په هغه باندې چې له ده څخه ځېږېدلي دي.

تفسير: يعنې آدم او بني آدم، او ځواب د قسم دا دی:

لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي كَبَدٍ ۝٤

چې خامخا په تحقيق پيدا کړی دی مونږ انسان بني آدم په رنځ او مشقّت کې.

تفسير: يعنې آدم عليه السلام له ابتداء څخه تر انتهاء پورې په رنځ او مشقّت اخته دی، او راز راز سختې په ده باندې تيرېږي، هيڅ داسې کېدونکې نه دي چې يو سړی پخپل ټول عمر کې د څه مدّت له مخې د دنيا د ګردو پېښو او چارو، محنتونو، رنځونو څخه فارغ او آزاد وي، او په پوره آزادۍ او بېفکرۍ سره ژوندون کوي، په رښتيا سره د انسان اصلي فطرت داسې واقع شوی دی، چې دی خپل ځان له دغو سختيو او جنجالونو څخه نه شي ژغورلی.

أَيَحْسَبُ أَن لَّن يَقْدِرَ عَلَيْهِ أَحَدٌ ۝٥

آيا ګمان کوي (کافر انسان) چې بېشکه له سره به قادر نشي په ده باندې هيڅوك (چې بدل ترې واخلي)؟.

تفسیر: یعنې انسان چې د هغو سختیو او مشقّتونو په لارې تیرېږي، نو د هغه اقتضاء خو داسې ده چې په ده کې عجز او درماندګي پیدا شي، او خپل ځان د قضا د حکم ترلی وګڼي، او د احکامو مطیع او د رضا تابع او په قضاء صابر وي، او هر کله خپل احتیاج او افتقار تر نظر لاندې ونیسي !، خو انسان دا خبره بالکل هېره کړې ده، نو آیا انسان داسې ګڼي چې داسې یوه هستي شته چې انسان د هغې تر حکم لاندې وي، او دوی ته د دې سرکشۍ او سرغړولو سزا ورکړی شي؟ بلکه الله أعظم شأنُه وأعظم برهانُهٗ دی !.

يَقُولُ أَهْلَكْتُ مَالًا لُّبَدًا ﴿٦﴾

وایي (له فخره) ما خرخ کړی وو مال خورا ډېر (په دښمنۍ د محمد کې).

تفسیر: یعنې د الله تعالی په معصیت، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عداوت، او د اسلام په مخالفت کې له حده تېر مال خرخ کوي، او په داسې خرخ کولو ځان باتور او ځلمی هم ګڼي.

أَيَحْسَبُ أَن لَّمْ يَرَهُ أَحَدٌ ﴿٧﴾

آیا ګمان کوي دی چې بېشکه نه دی لیدلی دی هیچا (په وخت د خرخ د مال کې).

تفسیر: یعنې الله تعالی دا ګرد شیان ګوري اوویني، او هومره مال په هر نیت سره په هر ځای او په هر څیز باندې چې ولګاوه شي؛ هغه ګرد ورته ښه معلوم دي، نو د دروغو او ریا څخه هیچا ته هیڅ یوه ګټه نه رسیږي.

أَلَمْ نَجْعَل لَّهُۥ عَيْنَيْنِ ﴿٨﴾

آیا نه دي ورکړي مونږ ده ته دوه سترګې (چې پرې وګوري، بلکه ورکړي مونږ ده ته دوه سترګې).

تفسیر: یعنې هغه چاته چې ما د لیدلو سترګې ورکړي دي آیا هغه پخپله نه ګوري؟.

وَلِسَانًا وَشَفَتَيْنِ ﴿٩﴾

او (آیا نه دي ورکړي مونږ ده ته یوه) ژبه او دوه شونډې.

تفسیر: چې له هغه څخه په خبرو اترو او خوړلو او څښلو کې کار اخیستل کیږي.

وَهَدَيْنَٰهُ ٱلنَّجْدَيْنِ ﴿١٠﴾

او ښوولي دي مونږ ده ته دوه لارې (د خیر او شر، چې پرې جنّت یا دوزخ ته ځي).

تفسیر: یعنې د ښو او بدو دواړه لارې یې ورښوولې دي، تر څو چې ځان له بدې لارې څخه وژغوري، او په ښه لاره تګ وکړي، او د دې خبرې ښوونه په اجمالي ډول سره د عقل او فطرت په وسیله شوې ده، او تفصیل یې د پیغمبرانو او مرسلانو په واسطه او د هغوی په ژبه شوی دی.

تنبیه: ځینو له «نجدین» څخه د ښځو دوه تي مراد اخیستي دي، یعنې رودونکیو ماشومانو او ووړکو ته یې د تي او د خوړو پیدا کولو لاره ورښوولې ده، چې پس له پیدا کېدلو ترې شوده څښي او خوري.

فَلَا اقْتَحَمَ الْعَقَبَةَ ﴿١١﴾

نو ربړ (تکلیف) یې ونه ایست په ختلو د غونډۍ کې (او سختي یې تېره نه کړه په مخالفت د نفس او هوا کې).

تفسیر: ځینو د «عقبه» معنی د تېرېدلو سخت ځای او غونډۍ اخیستې ده، یعنې سره له دومره زیاتو انعاماتو او د هدایت د اسبابو له موجودیته دوی دا توفیق ونه موند چې د دین په صعب المرور غونډۍ وخیژي، او سختي او ربړ په ځان واخلي، او د مکارم الأخلاق مدارج طي کړي، او د فوز او فلاح لوړو ځایونو ته ځان ورسوي.

تنبیه: دیني کارونه یې په غونډۍ سره ځکه تشبیه کړي دي چې د نفس او هوا د مخالفت په نسبت د هغه پای ته رسول سړي ته ډېر شاق وي، او ربړ پېښوي.

وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْعَقَبَةُ ﴿١٢﴾ فَكُّ رَقَبَةٍ ﴿١٣﴾

او څه شي پوه کړی یې ته چې څه دي ختل د غونډۍ؟. (عقبه) خلاصول د غاړې دي.

تفسیر: یعنې (عقبه) د مریي آزادول یا د پور (قرض) وړي غاړه له پوره قرضه خلاصول دي.

أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ ﴿١٤﴾

یا (دا عقبه) ورکول د طعام ډوډۍ دي په هغې ورځې کې چې خاونده د لوږې وي.

تفسیر: یعنې عقبه د قحطۍ او قیمتۍ او سختۍ په ورځو کې له وږي سره مرستې کول او هغوی ته د خوړو شیان وربرابرول دي.

يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ ﴿١٥﴾ أَوْ مِسْكِينًا ذَا مَتْرَبَةٍ ﴿١٦﴾

یتیم ته چې خاوند د خپلوۍ وي. یا غریب ته چې په خاورو ککړ وي (یا خاوند د خاورې).

تفسیر: د وړوکي پلار مړي خدمت کول ثواب دی، او له خپلوانو قرابت لرونکیو سره ښېګڼه هم ډېر ثواب لري، چېرې چې دا دواړه ثوابونه یو ځای شي؛ نو د هغې ثواب هم دوچنده کیږي.

عقبه ډوډۍ طعام ورکول دي د لوږې په ورځې کې غریب ته چې په خاورو ککړ وي، او د فقر او له فاقې د تنګسی او خوارۍ څخه په خاورو کې رغړي، نو د مال د لګولو ځایونه ښایي چې داسې وي، نه دا چې د ښادۍ او د غم په فضولو رسمونو کې او د الله تعالی په نافرمانۍ کې مالونه ولګول شي، او دنیوي نقصان او اخروي خسران وګټلی شي.

ثُمَّ كَانَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا

بیا وي (دغه آزاد کوونکي طعام ورکوونکي) له هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی.

تفسیر: یعنې د ګردو عملونو مقبولیت او د منلو شرط «ایمان» دی، که ایمان نه وي؛ نو ګرد کارونه او عملونه چټي او فضول دي، او هیڅ په کار نه راځي.

وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ وَتَوَاصَوْا بِالْمَرْحَمَةِ ﴿١٧﴾

او وصیت کوي یو له بله سره (په طاعت او مصیبت او له معصیته) او وصیت کوي یو له بله سره په مهرباني او شفقت سره.

تفسیر: یعنې نورو ته تل تأکید کوي چې ښایي د حقوقو او فرائضو په اداء کولو کې هر راز سختۍ او ربړونه پر خپل ځان وګالي، او د هر ډول تکلیف تحمل وکړئ !، او د الله تعالی پر مخلوق باندې رحم کوئ !، تر څو چې د اسمان خاوند پر تاسې باندې ورحمیږي.

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ ﴿١٨﴾

دغه (صابران مهربانان مؤمنان) اصحاب، خاوندان د ښي طرف دي.

تفسیر: یعنې دا کسان ډېر خوش نصیب او مبارک دي، چې هغوی ته د دوی اعمالنامې له ښي خوا په ښي لاس ورسپارلی کیږي.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا هُمْ أَصْحَابُ الْمَشْأَمَةِ ﴿١٩﴾

او هغه کسان چې کافران شوي دي په آیتونو ځمونږ همدوی اصحاب خاوندان د کیڼ طرف دي.

تفسیر: یعنې هغه کسان چې بد نصیب منحوس خراب شامت لرونکي دي چې اعمالنامې یې په کیڼ لاس کې ورکولی کیږي.

عَلَيْهِمْ نَارٌ مُؤْصَدَةٌ ﴿٢٠﴾

وي به پر دوی باندې اور سرپوښ کړی شوی.

تفسیر: یعنې په دوزخ کې اچول کیږي، او دوزخ ګردې دروازې تړل کیږي، (أعاذنا الله منها).

تمّت سورة البلد بفضل الله الصمد، فلله الحمدُ والمنّة.



# سُورَةُ الشَّمْسِ

«د (الشمس) سورت مکي دی، (۱۵) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۱) او په نزول کې (۲۶) سورت دی، وروسته د (القدر) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالشَّمْسِ وَضُحَاهَا ۝١ وَالْقَمَرِ إِذَا تَلَاهَا ۝٢

قسم دی په لمر باندې او په رڼا د هغه باندې. او په سپوږمۍ باندې کله چې راځي په دغه (لمر) پسې.

**تفسیر:** یعنې د لمر له ډوبېدلو څخه وروسته کله چې د سپوږمۍ رڼا خوره شي.

وَالنَّهَارِ إِذَا جَلَّاهَا ۝٣

او (قسم دی) په ورځ باندې کله چې ښکاره کاندي دغه (لمر).

**تفسیر:** یعنې کله چې په ورځ کې لمر د خپلې پوره پلوشې او روښنایي او صفایي سره رڼا غورځوونکی شي.

وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَاهَا ۝٤

او (قسم دی) په شپه باندې کله چې پټ کړي هغه (لمر) په تیاره خپله کې.

**تفسیر:** یعنې کله چې د شپې تیاره ښه توره شي، او د لمر د رڼا هیڅ نښه او پته نه وي.

وَالسَّمَاءِ وَمَا بَنَاهَا ۝٥

او (قسم دی) په اسمان، او په هغه (ذات باندې) چې جوړ کړی یې دی هغه (اسمان).

**تفسیر:** یعنې په هغه شان او عظمت سره چې له لرې ښکاري هغه یې جوړ کړی دی، او د ځینو په نزد له ﴿وَمَا بَنَاهَا﴾ څخه مراد د هغه جوړوونکی دی أکرم شأنُه وأعظم برهانُه، جل جلالُه وعم نواله.

وَالْأَرْضِ وَمَا طَحَاهَا ۝٦

او (قسم دی) په ځمکې او په هغه (ذات باندې) چې غوړولې یې ده هغه (ځمکه).

**تفسیر:** یعنې په هغه حکمت سره یې هغه وغوړوله، او د مخلوق د هستوګنې وړ یې وګرځوله، دلته هم ځینو ﴿وَمَا طَحَاهَا﴾ څخه د هغه غوړوونکی مراد اخیستی دی، أکرم شأنُه وأعظم برهانُه، جل جلالُه وعم نواله.

وَنَفْسٍ وَمَا سَوَّاهَا ۝٧

او (قسم دی) په نفس او په هغه (ذات باندې) چې برابر کړي یې دي (اندامونه د) هغه.

تفسیر: د مزاج اعتدال، ظاهري او باطني حواسیه طبیعیه او حیوانیه او نفسانیه قواوې یې په تناسب سره ورکړې دي، او د نېکۍ او د بدۍ په لارې باندې یې د تللو استعداد ورعطا فرمایلی دی.

فَأَلْهَمَهَا فُجُورَهَا وَتَقْوَاهَا ﴿٨﴾

پس ښوولې یې ده په زړه د ده کې بدي د ده او نیکي د ده.

تفسیر: یعنې اول یې په اجمالي ډول د سلیم عقل او صحیح فطرت په وسیله په ښو او بدو کې د فرق کولو پوهه راکړې ده، بیا یې په تفصیلي صورت د انبیاوو او رسولانو په ژبه ښه ښکاره راښودلې دي چې دا لار د بدۍ ده، او هغه د پرهېزګارۍ ده.

او ځواب د دغو پاس قسمونو چې د دغه سورت له شروع څخه شروع شوي دي دا دی:

قَدْ أَفْلَحَ مَن زَكَّاهَا ﴿٩﴾

چې په تحقیق سره نجات وموندہ په مراد ورسېد هغه څوک چې پاک یې کړ دا (نفس له معاصیو).

تفسیر: د نفس پاکول او صفایي دا ده چې شهواني او غضباني قواوې د عقل تابع شي، او عقل د الهیه شریعت تابعدار وګرځي، تر څو چې روح او قلب دواړه د الله تعالی په رڼا کې روڼ او منور شي.

وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّاهَا ﴿١٠﴾

او په تحقیق نامراد زیانمن شو هغه څوک چې پټ یې کړ دغه (نفس په خاورو د ګناهونو کې).

تفسیر: له خاورو پټ کولو څخه مطلب دا دی چې د نفس متروکه یې له یوې مخې د شهوت او د غضب په لاس ورکړي، او له عقل او شرعې سره هیڅ ارتباط او اړه ونه لري، ګواکې د هوس او د نفساني غوښتنې مریي او بنده شي، داسې سړی له ځناورانو څخه خراب او ذلیل وي.

كَذَّبَتْ ثَمُودُ بِطَغْوَاهَا ﴿١١﴾

دروغجن شمېرلی وو ثمودیانو (رسول خپل) په خپلې سرکشۍ سره.

تفسیر: یعنې صالح علیه السلام یې دروغجن وباله، دا د﴿وَقَدْ خَابَ مَن دَسَّاهَا﴾ یو مثال یې د عبرت په شان بیان وفرمایه، دا قصه د «الأعراف» په سورت او نورو ځایونو کې په تفصیل سره ذکر شوې ده:

إِذِ انبَعَثَ أَشْقَاهَا ﴿١٢﴾ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ نَاقَةَ اللَّهِ وَسُقْيَاهَا ﴿١٣﴾

کله چې پورته شو (په چابکۍ سره) لوی بدبخت د هغوی. پس وویل دوی ته رسول د الله (خبردار پرېږدئ، لاس پورته کړئ له) اوښې د الله، او د اوبو څښلو د نوبت د هغې (چې درباندې رانشي عذاب).

تفسیر: یعنې خبردار دا اوښه ونه وژنئ !، او نه د هغې د وار او نوبت اوبه بندې کړئ !، د اوبو ذکر یې ځکه وفرمایه چې په ښکاره ډول د هغې د وژلو سبب د هغوی د لوري همدا اوبه وې، او د الله تعالی اوښه یې ځکه وویل؛ چې پاک الله

تعالی هغه د صالح علیه السلام د نبوّت معجزه او نښه ګرځولې وه، او په دې اعتبار سره د هغې احترام واجب بلل شوی وو، دا قصه پخوا له دې نه په (الأعراف) او نورو سورتونو کې هم یاده شوې ده:

فَكَذَّبُوهُ فَعَقَرُوهَا فَدَمْدَمَ عَلَيْهِمْ رَبُّهُم بِذَنبِهِمْ فَسَوَّاهَا ﴿١٤﴾

نو دروغجن وباله دغو، پس زخمي او مړه یې کړه هغه (اوښه)؛ نو سخت عذاب یې ولېږه په دوی باندې رب د دوی په سبب د ګناه د دوی، نو برابر یې کړل سره دغه (ټول په هلاک کې).

تفسیر: صالح علیه السلام فرمایلي وو: ﴿وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ﴾ «په دې اوښې باندې په بدۍ سره لاس مه لګوئ؛ په خوږوونکي عذاب به ککړ شئ»، دې خلقو دا خبره دروغ وګڼله، او د خپل پیغمبر تکذیب یې وکړ، او اوښه یې ووژله، په پای کې هم هغه وشو چې صالح علیه السلام ویلي وو، الله تعالی هغوی ټول لوی او واړه پناه کړل.

وَلَا يَخَافُ عُقْبَاهَا ﴿١٥﴾

او نه ویرېږي (الله) له عقوبت او هلاکت د دوی څخه.

تفسیر: یعني لکه دنیوي باچاهانو ته د کوم لوی قوم یا ملک له سزا ورکولو څخه وروسته تل دا فکر او خیال وي چې چېرې بیا هلته کوم شورش او فتنه پیدا نشي، او د ملک په انتظام او په ملکي او لښکري چارو کې څه خلل او ډېل راښکاره نشي، الله تعالی له داسې اندېښنو څه پاک او بې پروا دی، ولې چې داسې بل کوم یو قوّت او طاقت نشته، چې د دې په هېڅ رسېدلیو مجرمانو په کسات اخیستلو او انتقام پسې وګرځي، (العیاذ بالله).

تمّت سورة الشّمس بفضل الله تعالی و کرمه ومنّه.



# سُورَةُ اللَّيۡلِ

«د (اللّيل) سورت مكي دى، (۲۱) آيته يوه ركوع لري، په تلاوت كې (۹۲) او په نزول كې (۹) سورت دى، وروسته د (الأعلى) له سورته نازل شوى دى».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

وَالَّيۡلِ اِذَا يَغۡشٰى ۙ﴿۱﴾ وَالنَّهَارِ اِذَا تَجَلّٰى ۙ﴿۲﴾ وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالۡاُنۡثٰٓى ۙ﴿۳﴾ اِنَّ سَعۡيَكُمۡ لَشَتّٰى ؕ﴿۴﴾

قسم دى په شپه كله چې پټ كړي (هر شی په تياره خپله سره). او (قسم دى) په ورځ باندې كله چې روښانه شي. او (قسم دى) په هغه ذات باندې چې پيدا كړى يې دى نارينه او ښځه (له يوه اوبو نه. او ځواب د قسم دا دى) چې بېشكه سعي عملونه ستاسې خامخا راز راز دي (چې ځينې طاعت كوي او ځينې معصيت).

تفسير: يعنې همغسې چې په دنيا كې ورځ او شپه، نر او ښځه مختلف او متضاد شيان پيدا كړى شوي دي، د دې مختلفو اعمالو او مساعيو ثمرې او نتيجې هم مختلفې دي، چې د هغو نتائج او ثمرات به مختلف او متضاد وي، لكه چې د هغو ذكر اوس الله جل شأنُه وأعظم برهانُه سره له اختلاف او مجازات يې دغسې فرمايي:

فَاَمَّا مَنۡ اَعۡطٰى وَاتَّقٰى ۙ﴿۵﴾ وَصَدَّقَ بِالۡحُسۡنٰى ۙ﴿۶﴾ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلۡيُسۡرٰى ؕ﴿۷﴾

نو هر چې هغه څوك دي چې وركړه يې كوله (د مال)، او وېرېده (له الله). او يقين يې كړى وو په ښه كلمه (د ايمان). نو ژر ده چې تيار به يې كړو لپاره د لارې اسانې (شريعت).

تفسير: يعنې هغه سړي چې په نېكه لاره كې مال لګوي، او په زړه كې له الله تعالى څخه وېرېږي، او اسلامي خبرې رښتيا ګڼي، او پر ربّاني بشاراتو باندې باور لري او صحيح يې ګڼي؛ د هغه لپاره به مونږ سم له خپل عادت سره د نېكۍ لارې ور اسانوو، او په پاى كې به يې د اسانۍ او راحت مقام ته رسوو، چې د هغه نوم جنّت دى.

وَاَمَّا مَنۡۢ بَخِلَ وَاسۡتَغۡنٰى ۙ﴿۸﴾ وَكَذَّبَ بِالۡحُسۡنٰى ۙ﴿۹﴾ فَسَنُيَسِّرُهٗ لِلۡعُسۡرٰى ؕ﴿۱۰﴾

او هر چې هغه څوك دي چې بخيلي يې وكړله (په اداء د حقوقو)، او بې پروايي يې وكړله (له الله). او دروغ يې وګڼله ښه كلمه (د ايمان). نو ژر ده چې تيار به يې كړو لپاره د لارې سختې (د بد عملى).

تفسير: يعنې هغه سړى چې د الله تعالى په لاره كې يې خرڅ ونه كړ، او د هغه د خوښې او د آخرت د ثواب پروا يې ونه كړه، او د اسلام خبرې او د الله تعالى وعدې يې دروغ وبللې؛ د هغه زړه ورځ په ورځ تنګ او تياره او كلكيږي، د نېكۍ توفيق ورځنې سلبيږي، او په پاى (آخر) كې په ورو ورو د عذاب الله انتهايي سختې وررسيږي، همدا د الله تعالى عادت دى چې نېكان هر كله ښې چارې ځان ته غوره كوي، او بدان هر كله په بد عمل پسې ګرځي، دې دواړو ته د همدوى لارې ور اسانوي، چې هغوى هغه سم د الله تعالى له تقدير سره او د خپلې ارادې او اختيار له مخې كړى دى.

وَمَا يُغْنِي عَنْهُ مَالُهُ إِذَا تَرَدَّى ﴿١١﴾

او نه دفعه کوي له ده څخه (عذاب) مال د ده کله چې هلاک شي په کنده کې ولوېږي.

**تفسیر:** یعنې هغه مال او دولت چې دوی پرې ډاډه دي، او دوی یې له آخرت څخه بې پروا کړي؛ هغه د یوې ذرې په قدر هم دوی له عذاب څخه نه خلاصوي.

إِنَّ عَلَيْنَا لَلْهُدَىٰ ﴿١٢﴾ وَإِنَّ لَنَا لَلْآخِرَةَ وَالْأُولَىٰ ﴿١٣﴾

بېشکه پر مونږ دی خامخا هدایت سمه صافه لاره ښوول. او بېشکه مونږ ته دی خامخا آخرت او دنیا (یعنې زه مالک د دې دواړو یم، نو خطا کوي هغه چې دا دواړه غواړي له بل چا نه).

**تفسیر:** یعنې څمونږ د حکمت داسې اقتضاء نه ده چې څوک په زور او زیادت سره په ښو یا بدو چارو باندې مجبور کړو، هو ! څمونږ په ذمه او غاړه ده چې ګردو ته د ښو او بدو لارې وروښیو، او ښه او بد وربښکاره کړو، او د دواړو نتیجې په ښه شان ورته ووایو، بیا هر چا چې هره لاره ځان ته غوره کړه په دنیا او آخرت کې به سم له هغې سره جزا ورکاوه شي.

فَأَنذَرْتُكُمْ نَارًا تَلَظَّىٰ ﴿١٤﴾

نو وویرولئ ما تاسې (ای منکرانو) له اوره چې لمبې به وهي.

**تفسیر:** له دې لمبې وهونکي څخه به ښایي د دوزخ هغه طبقه مراد وي چې خورا لویو مجرمانو او بدبختانو لره مخصوصه ده.

لَا يَصْلَاهَا إِلَّا الْأَشْقَى ﴿١٥﴾ الَّذِي كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰ ﴿١٦﴾

نه به ننوځي (په طریقه د دوام سره) په هغه (اور د دوزخ) کې مګر لوی بدبخت (کافر) هغه چې درواغ ګڼي حق او مخ یې ترې ګرځولی وي.

**تفسیر:** یعنې تل به هلته لوېږي، او هیڅکله به له هغه ځایه نه وځي.

وَسَيُجَنَّبُهَا الْأَتْقَى ﴿١٧﴾

او ژر ده چې ګوښه (بېل) به شي له هغه اوره ښه وېرېدونکی (مؤمن).

**تفسیر:** یعنې د داسې خلقو سپېږمو ته د هغه وږمه هم نه رسیږي، او بالکل ورځنې صاف او پاک او ژغورلي وي.

الَّذِي يُؤْتِي مَالَهُ يَتَزَكَّىٰ ﴿١٨﴾

هغه چې ورکوي مال خپل لپاره د دې چې پاک شي.

**تفسیر:** یعنې د نفس پاکول له بخل او طمع او نورو رذائلو څخه په داسې ډول مقصود دي، چې ریا، نمایش، او دنیوي اغراض هیڅ په کې نه وي.

وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعۡمَةٖ تُجۡزَىٰٓ ١٩ إِلَّا ٱبۡتِغَآءَ وَجۡهِ رَبِّهِ ٱلۡأَعۡلَىٰ ٢٠ وَلَسَوۡفَ يَرۡضَىٰ ٢١

او نه وو هيچا لره په نزد د ده هيڅ احسان او نعمت چې بدل يې ور كاوه شي. مګر لپاره د غوښتنې د مخ د رب خپل چې اوچت دی (چې د الله تعالی مخ ووينې، او دهغه رضا يې نصيب شي). او ژر دی چې دی به راضي شي.

**تفسير:** يعني له خرڅ كولو ځخه يې د كوم مخلوق احسان او د حق اداء كول مقصد نه وي، بلكه خالص د مولی د رضا او د پاك الله د لقاء د تمنّا كولو لپاره خپل كور او شته خيراتوي او لوټوي، نو داسې څوك دې ډاډه وي چې هرومرو به خوښيږي او د هغه دا هيله به پوره كيږي: ﴿فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجۡرَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾

تمّت سورة اللّيل بفضل الله تعالی ومنّه وكرمه.



# سُوْرَةُ الضُّحٰى

«د (الضّحیٰ) سورت مکي دی، (۱۱) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۳) او په نزول کې (۱۱) سورت دی، وروسته د (الفجر) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالضُّحٰى ﴿١﴾ وَالَّيْلِ اِذَا سَجٰى ﴿٢﴾ مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ وَمَا قَلٰى ﴿٣﴾

قسم دی په څاښت (چې روښانه دی). او قسم دی په شپه کله چې تیاره شي (او پټ کړي اشیا په تیاره خپله کې). چې نه دی درکړی رخصت تاته (نه یې پریښی) رب ستا، او نه یې دښمن نیولی یې ته (ای محمده !).

تفسیر: په صحیحو روایتونو کې راغلي دي چې تر ډېر مدّت پورې پر محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې وحي رانغله، او جبریل علیه السلام محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ته رانغی، مشرکینو به پخپلو منځونو کې وویل: «وګورئ چې (محمد) د خپل الله له لوري رخصت کړ شو»، د دې خبرې په ځواب کې دا آیتونه نازل شول، ځما په ګمان (والله أعلم) چې دا زمانه د فترت الوحي زمانه وه، کله چې د قرآن د ﴿اِقْرَاْ﴾سورت ابتدائي آیتونه نازل شول، نو وروسته له هغه تر یو اوږد مدّت پورې وحي راتلل معطّل پاتې شول، او پخپله رسول أکرم صلی الله علیه وسلم به د دې فترت په زمانه کې ډېر مغموم او پرېشان وو، تر دې چې د الله تعالی له خوا پرښتې هغوی ته د ﴿يٰۤاَيُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾خطاب واوراوه، اغلبًا په دې زمانې کې به مخالفانو داسې خبرې کولې لکه چې ابن کثیر (رحمه الله) له محمد بن اسحاق (رحمه الله) او نورو څخه هغه الفاظ چې نقل کړي دي هغه د دې احتمال تأیید کوي، ممکن دي چې په دغه وخت کې به دا قصه هم پېښه شوي وي چې په ځینو صحیحه روایتونو کې راغلي ده، چې یو ځلې رسول الله صلی الله علیه وسلم د ناروغی له سببه دوه درې ورځې په بستره کې پرېوت، نو یوې خبیثې ښځې وویل: «ای محمده ! داسې راښکاري چې ستا شیطان له تا څخه مرور شوی دی»، العیاذ بالله لنډه یې دا چې دا راز چټې (بېکاره) خبرې او اترې ډېرې کېدې، تر دې چې د دې ګردو خرافاتو په ځواب کې د ﴿وَالضُّحٰى﴾ سورت نازل شو، او ړومبی یې قسم یاد کړ د لمر ختو په وخت باندې، او بیا یې په توره تیاره شپه باندې، او بیا یې وفرمایل چې: د دښمنانو دا ګرد خیالات او ویناوې غلطې دي، ستا پروردګار تاته رخصت نه دی درکړی، بلکه هسې چې ښکاره ده هغه د خپل قدرت او حکمت راز راز علائم او نښې ښکاره کوي.

وَلَلْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لَّكَ مِنَ الْاُوْلٰى ﴿٤﴾

او خامخا آخرت بهتر دی تا لره (ای محمده !) له دنیا څخه.

تفسیر: یعني ستاسې وروستنی حالت له وړاندني حالت څخه ډېر ارفع او اعلی دی، د دې څو ورځو د وحي نه راتګ ستاسې د نزول او انحطاط سبب کېدی نشي، بلکه ستاسې د ډېر عروج او د خورا ارتقاء وسیله کیږي، که د وروستني حالت تصور وکړئ، او د آخرت شان او لویی تـه ځیر شئ چې هلته به آدم علیه السلام او د هغه ګرده اولاده ستاسې تر

بیرغ لاندې ټولیږي، نو در ښکاره به شي چې د تاسې د هغې ورځې لويي او فضيلت او عظمت د نن ورځې د اعزاز او اکرام څخه په څو څو درجو پورته وي.

وَلَسَوۡفَ يُعۡطِيكَ رَبُّكَ فَتَرۡضَىٰٓ ۝٥

او خامخا ژر ده چې در به کړي تاته رب ستا (ای محمده لویه برخه په آخرت کې او اختیار د شفاعت) پس راضي به شې ته.

تفسیر: یعنې بېزاري او پرېښودل به څنګه وي، اوس خو به تاته ستا رب په دنیا او آخرت کې دومره دولتونه او نعمتونه در وبښي؛ چې ته پوره ډاډه او خوښ شې.

أَلَمۡ يَجِدۡكَ يَتِيمٗا فَـَٔاوَىٰ ۝٦

آیا نه یې وې موندلی ته (ای محمده) یتیم (وړوکی بې پلاره، بلکه موندلی یې وې) نو ځای د پناه یې درکړ (په تربیت د ابوطالب کې یې ونیولې).

تفسیر: د محمد صلی الله علیه وسلم د باسعادت ولادت څخه پخوا د دوی پلار مړ شوی وو، شپږ کلن وو چې مور یې هم مړه شوه، په اته کلنۍ کې یې نیکه عبد المطّلب چې د دوی کفالت ورپغاړه وو هم مړ شو، بیا د دې یتیم او نادر روزګار د ظاهرًا روزنې او پالنې سعادت د ده بېحده مهربان او شفیق تره ابو طالب ته په غاړه شو، ابو طالب پخپل ژوندون کې د دوی په نصرت، حمایت، تکریم، تبجیل او خدمت کې ډېر زیار وویست، خو پخوا له هجرت څخه دی هم مړ شو، څو ورځې وروسته د الله تعالی دا أمانت د مدینې منورې د انصارو په برخه شو، او د (اوس) او د (خزرج) د قبیلې د قسمت ستوري وځلېدل، او دوی د هغوی په خدمت او حفاظت کې ډېر ربړونه وګالل، او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دغسې ښه خدمت او صیانت یې وکړ چې په ټول جهان کې د هغه نظیر او مثال نشته، دا ګردې پېښې درجه په درجه تر ایواء لاندې راځي لکه څرنګه چې ابن کثیر (رحمه الله) ورته اشاره کړې ده.

وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا فَهَدَىٰ ۝٧

او موندلی یې وې ته چې نه پوهېدې (په شرع او احکامو د شریعت)، نو در وېې ښوده (تاته شرعي احکام او در یې کړ نبوّت).

تفسیر: یعنې کله چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ځلمی شو، د خپل ټبر د مشرکانه وو اطوارو او چټي (بېکاره) رسمونو او رواجونو څخه سخت خفه او بېزاره وو، او د هغوی په زړه کې یواځې د الله تعالی د عبادت جذبه په قوّت کې وه، خو په ښکاره ډول کومه سمه لاره او مفصّل دستور العمل دوی ته نه وو څرګند، تر څو چې الله تعالی د (حراء) په سمڅ کې د پرښتې په ژبه دوی ته وحي ورولېږله، او د «وصول الی الله» او د خلق الله د اصلاح تفصیلي لارې یې وروښودلې، یعنې د حق دین یې ورنازل کړ: ﴿مَا كُنتَ تَدۡرِي مَا ٱلۡكِتَٰبُ وَلَا ٱلۡإِيمَٰنُ وَلَٰكِن جَعَلۡنَٰهُ نُورٗا نَّهۡدِي بِهِۦ مَن نَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِنَاۚ﴾ (د ۲۵ جزء د شوری سورت (۵) رکوع (۵۲) آیت).

وَوَجَدَكَ عَآئِلٗا فَأَغۡنَىٰ ۝٨

او موندلی یې وې ته فقیر پس غني یې کړې (په مال د غنیمت یا په مال د خدیجې یا د زړه په غناء سره).

تفسیر: په دې شان چې دوی د خدیجې رضي الله تعالی عنها په تجارت کې مضاربت شروع کړ، او په هغه کې یې ګټه وکړه، بیا خدیجې رضي الله تعالی عنها له دوی سره نکاح وکړه، او خپل ګرد مال یې هغوی ته تملیک کړ، چې دا ښکاره غناء ده، د دوی باطني او قلبي غناء هغه وه چې هغه د دواړو دارینو غني ذات ته ښه معلومه ده، او هیڅ یو سړی د هغې اندازه نشي کولی، مطلب دا چې تاسې له ابتداء څخه د انعاماتو مورد یئ، او پس له دې نه به هم یئ، هغه الله تعالی چې په دې ډول ستا تربیت کړی دی؛ نو څرنګه به له تاسې څخه بېزاره کیږي؟ او تاسې به همداسې خوشې په ډګر کې پرېږدي.

﴿فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ ۝٩ وَأَمَّا السَّائِلَ فَلَا تَنْهَرْ ۝١٠ وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۝١١﴾

نو هر چې یتیم دی پس مه ورته په قهر کېږه. او هر چې سوالګر دی پس مه یې رټه. او هر چې نعمت د رب ستا دی پس بیانوه یې خلقو ته.

تفسیر: بلکه د یتیم خبر نیونه او پالنه وکړه !، لکه چې تاته الله تعالی د یتیمی په حالت کې ښه ځای درکړ؛ نو ته هم د یتیمانو د زړه د خوښۍ اسباب ورغونډوه !، او د هغوی د هستوګنې د ځای سر رشته کوه !، چې په داسې مکارمو اخلاقو سره بندګان د الله تعالی په رنګ سره رنګول کیږي: ﴿صِبْغَةَ اللَّهِ ۖ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ صِبْغَةً﴾ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «أنا وكافل اليتيم كهاتين، وأشار إلى السّبّابة والوسطى».

او هر چې سوالګر دی پس مه یې رټه !، او څه شی ورته ورکړه !، یا یې رد کړه په نېکۍ او خوږې ژبې سره، یعنې ته نادار وې الله تعالی تاته غناء دروبښله، اوس نو د شکر ګزارو بندګانو حوصله ښايي چې داسې وي چې د غوښتونکي له غوښتنې څخه زړه تنګي نه شي !، او د حاجتمندانو له سواله ونه ویرېږې !، او هغو ته سختې خبرې ونه وایې !، او ویې نه رټې !، بلکه تل په روڼ تندي او ښو اخلاقو او لوی زړه معامله ورسره وکړې، هغه قصې چې په احادیثو کې د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم د اخلاقو د وسعت په نسبت د سائلینو په مقابل کې راغلي دي؛ خورا سخت مخالفان هم د هغوی د اخلاقو د وسعت ستاینکي ګرځوي.

او هر چې نعمت د رب ستا دی نو بیانوه یې خلقو ته، د محسن د احساناتو یادول د شکر ویلو په نیت، نه د فخر او مباهاتو په ډول شرعًا محمود دي، نو ځکه هغه انعامات چې الله تعالی په تا باندې کړي دي؛ د هغه بیان وفرمایئ !، خصوصًا هغه نعمت د هدایت چې د هغه ذکر په ﴿وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدَىٰ﴾ کې وشو، و د هغه خورول په خلقو کې او په ښکاره لوړ غږ سره ویل ستاسې منصبي فرض دی، ښايي د دوی ارشادات او خبرې او نور چې په حدیثو کې کیږي؛ د همدې ﴿فَحَدِّثْ﴾ څخه اخیست شوی وي، والله أعلم.

تمّت سورة الضُّحى بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُوْرَةُ الشَّرْحِ

«د (الانشراح) سورت مکي دی، (۸) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۴) په نزول کې (۱۲) سورت دی، وروسته د (الضّحی) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۝١

آیا نه ده پراخه کړې مونږ تا لره سینه ستا (په نبوّت او حکمت سره، بلکه پراخه کړې ده مونږ سینه ستا).

تفسیر: چې الله تعالی ستا په سینې کې یې (ای محمده !) د علومو او د معارفو لوی سیندونه وبهول، او د نبوّت د لوازمو او د رسالت د فرائضو د بار د پورته کولو لوی قوّت او حوصله یې درته وبښله، او د داسې لوی زړه او حوصلې څښتن یې وګرځولې، چې د ډېرو دښمنانو د عداوت او مخالفت او مزاحمت څخه نه ویرېدې.

وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ ۝٢ الَّذِيْٓ اَنْقَضَ ظَهْرَكَ ۝٣

او کوز کړ مونږ له تانه درووند بار ستا. هغه چې کړه، درنه کړې یې وه شا ستا.

تفسیر: د وحي ښکته کېدل په اول کې سخت مشکل وو، بیا آسان شول، یا د رسالت منصب د ذمه واریو د محسوسولو په سبب چې د هغوی په مبارک خاطر کې څه ګراني راتله هغه ور پورته کړه شوه.

وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ ۝٤

او پورته کړ مونږ ستا لپاره ذکر ستا (په نبوّت سره یا مې ستا نوم له خپل نامه سره پیوسته کړ).

تفسیر: یعني ای محمده ! صلی الله علیه وسلم په پرښتو او پیغمبرانو کې ستا نوم لوړ او اوچت دی، د دنیا ګرد پوهان په ډېر عزّت او وقعت سره ستا نوم یادوي، په اذان، اقامت، کلمه طیبه او التحیات، خطبه او نورو کې وروسته د الله تعالی له نامه څخه د محمد صلی الله علیه وسلم نوم اخیست کیږي، کوم ځای کې چې الله تعالی خپلو بندګانو ته د خپل اطاعت امر کړی دی؛ د محمد صلی الله علیه وسلم د امر د منلو یې هم ورسره متّصل او جخت کړی دی.

فَاِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ۝٥ اِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ۝٦

نو بېشکه سره له سختۍ اسانتیا شته. بېشکه سره له سختۍ اسانتیا شته.

تفسیر: یعني د الله تعالی د رضا غوښتلو په لاره کې هغه ربړونه چې نبي صلی الله علیه وسلم په ځان ګاللي دي، او هغه زیارونه چې ایستلي یې دي؛ له هغو سختیو سره څو څو اسانی هم شته، لکه د حوصلې د پراختیا په سبب د ګردو مشکلاتو لرې کول اسان شول، او د ذکر د پورته کېدلو له تصوّر څخه تاسې ته د لویو لویو مصیبتونو تحمل اسان

وګرځېده، یا دا مطلب کله چې مونږ تاسې ته روحاني راحت درکړ، او روحاني کلفت مو له تاسې څخه پورته کړ، لکه چې د ﴿اَلَمۡ نَشۡرَحۡ﴾ څخه تر آخره پورې ښکارېږي، نو په دنیوي راحت او محنت کې هم څمونږ فضل او کرم ته هیله ولرئ، مونږ وعده کوو چې په رښتیا سره د دې موجوده وو مشکلاتو په پای (آخر) کې اساني شته، لکه چې له احادیثو او سِیرو څخه راښکاره شوې ده، هغه ګرد مشکلات یو یو له منځه لرې شوي، او د هرې یوې سختی په پای کې به څو څو اسانتیاوې راتللې.

فَإِذَا فَرَغۡتَ فَٱنصَبۡ ۞ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَٱرۡغَب ۞

نو کله چې فارغ شې (ای محمده دنیوي کارونو نه، یا له تبلیغه)؛ نو ځان ستړی کوه (په عبادت، دعاء کې) او رب خپل ته پس رغبت او زاري کوه (په هر وقت کې).

تفسیر: یعنې کله چې د دنیا له کارونو یا د خلقو له پوهولو څخه فارغ شې؛ نو په خلوت کې کښېنه، زیار (محنت) کوه !، چې د زیات «یسر» سبب وګرځي، او د خپل رب په لوري بلا واسطه متوجه شه !.

تمّت سورة الانشراح بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ التِّينِ

«د (التّين) سورت مكي دی، (٨) آيته يوه رکوع لري، په تلاوت کې (٩٥) په نزول کې (٢٨) سورت دی، وروسته د «البروج» له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالتِّينِ وَالزَّيْتُونِ ①

قسم دی په انځر او زيتون خونه باندې.

تفسير: انځر او خونه (زيتون) دواړه د خپل کثير المنافع او د جامع الفوائد توب لامله د انساني حقيقت او د جامعې له ضرورت سره خصوصي مشابهت لري، نو ځکه د ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ﴾ مضمون يې په دواړو قسمونو سره شروع کړ، او ځيني محققين وايي چې: دلته «التين» او «الزّيتون» څخه هغو دوو غرونو ته اشاره ده چې بيت المقدس ته نژدې پراته دي، ګواکې دلته په ونو باندې قسم نه يادوي، بلکه په هغه مقدّس ځای باندې قسم يادوي چې هلته دا ونې ډېرې دي، او همغلته د عيسی عليه السلام مولد او مبعث هم دی.

وَطُورِ سِينِينَ ② وَهَٰذَا الْبَلَدِ الْأَمِينِ ③

او قسم دی په (غره چې نوم يې) طور سينين (دی)، او قسم دی په دې ښار امان ورکوونکې (د مکې) باندې.

تفسير: «طور سينين» يا د «طور سينا» هغه غر دی چې پر هغه باندې الله تعالی له موسی عليه السلام سره خبرې کړې دي، او د امن ورکوونکی ښار مکه معظمه ده چې ځمونږ او د ګرد اسلامي عالم سردار محمد صلی الله عليه وسلم په کې متولد او مبعوث شوی دی، او د الله تعالی له ګردو څخه لوی او وروستنی امانت قرآنکريم اول ځلي په همدې ښار کې رانازل شوی دی.

لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنسَانَ فِي أَحْسَنِ تَقْوِيمٍ ④

چې خامخا په تحقيق پيدا کړی دی مونږ انسان بني آدم په ډېر ښه اعتدال سره.

تفسير: يعني دا ګرد متبرّکه مقامات چې له هغه څخه ډېر اولوالعزم پيغمبران مبعوث شوي دي ګواه دي چې مونږ انسان په يوه ښه قالب کې اچولی دی، او ښه قوّتونه مو وربښلي دي، او په ظاهري او باطني ښېګڼو مو ښايسته کړی دی، او ډېر ګڼور شيان مو د ده په وجود کې راغونډ کړي دي.

ثُمَّ رَدَدْنَاهُ أَسْفَلَ سَافِلِينَ ⑤

بيا وګرځاوه مونږ هغه (انسان په ضمن د بعضو افرادو کې) ډېر ښکته تر ښکتو نه (چې لاندنی طبقه د دوزخ ده).

تفسیر: یا رد به کړم دغه انسان پس له ښه قامته ډېر ښکته له ښکتو نه چې هغه زوړوالی دی، نو شا به یې ټیټه، ویښته به یې سپین، غوږونه به یې کاڼه شي، او مغیر به یې شي ټول ځیزونه.

إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَلَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ﴿٦﴾

مګر هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او کړي یې دي ښه (عملونه) نو وي به دوی ته اجر ثواب بې انتهاء بلا انقطاع.

تفسیر: چې نه به کم او نه به ختم شي، او نه به د چا احسان پرې وي.

فَمَا يُكَذِّبُكَ بَعْدُ بِالدِّينِ ﴿٧﴾

پس څه شی دی چې تا باعث کوي په دروغ ګڼلو (ای منکر د بعثه) وروسته (له دې واضحو دلائلو) په ورځ د جزاء؟.

تفسیر: یعنې ای سړیه ! وروسته له دې دلائلو څخه ته ولې د جزاء له سلسلې څخه سر غړوې؟ او ترې انکار کوې؟.

نو د دې خبرې ځواب الله أعلی شأنهُ ! وأعظم برهانُهُ ! جل جلالهُ ! عمّ نوالهُ ! داسې فرمایي:

أَلَيْسَ اللَّهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ ﴿٨﴾

آیا نه دی الله ښه لوی حاکم د ټولو حاکمانو؟ (بلکه ښه لوی حاکم دی پر ټولو حکم کوونکیو باندې).

تفسیر: یعنې د دې لوېې شهنشاهۍ او سترې ټولواکۍ په مخامخ د دنیا ګرد دولتونه او حکومتونه هیڅ دي، کله چې دلته دا وړوکي وړوکي حکومتونه خپلو وفادارانو ته انعام او مجرمانو ته سزا ورکوي؛ نو آیا د هغه أحکم الحاکمین له درباره داسې هیله لرل کومه لویه خبره ده؟.

تمّت سورة التين بفضل الله تعالى وكرمه ومنّه.



# سُورَةُ العَلَق

«د (العلق) سورت مکّي دی، (۱۹) آيته يوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۶) سورت دی، او په نزول کې همدغه سورت ړومبنی سورت د قرآنکريم دی چې نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ ①

ولوله (ای محمده ! قرآن) په برکت د نامه د رب خپل هغه رب پالونکی چې پيدا کړي يې دي (ټول مخلوقات).

تفسير: دا پنځه آيتونه له ﴿اِقْرَاْ﴾ څخه تر ﴿مَا لَمْ يَعْلَمْ﴾ پورې د قرآنکريم له ګردو آيتونو او سورتونو څخه مخکښې نازل شوي دي، رسول أكرم صلى الله عليه وسلم د (حراء) په سمڅ کې د وحده لا شريك له الله تعالى په عبادت کې مشغول وو، چې ناڅاپه جبريل عليه السلام له وحي سره ورننوت، او ورته يې وويل: ﴿اِقْرَاْ﴾ «ولوله»، دوی وفرمايل: «ما أنا بقارئ» «زه لوستونکی نه يم !»، جبريل عليه السلام ځو ځلې دی پخپلې غېږې کې ونيو، او په زور يې کښېښود او ورته ويل به يې: ﴿اِقْرَاْ﴾، دوی به هغمه «ما أنا بقارئ» ويل، درېيم ځلې جبريل عليه السلام دی صلى الله عليه وسلم په ډېر زور سره کښېښود، او ورته ويې ويل: ﴿اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِيْ خَلَقَ﴾ «يعنې د خپل رب په نامه او برکت سره ولوله !»، مطلب دا چې هغه پروردګار چې له ولادت څخه يې تر اوسه پورې په عجيب او غريب ډول ستا پالنه او روزنه وفرمايله، هغه څوك چې دا خبر درکوي چې له تا څخه کوم لوی کار اخيست کيږي؛ آيا هغه به دې همداسې يواځې او بې يار او مددګار پرېږدي؟ هيڅ کله به داسې نه کيږي، او تاسې ته د هغه لوی ذات په نامه ښوونه کيږي، چې د هغه په لورينه ستاسې تربيه او روزنه شوې ده، يعنې هغه رب العالمين اعلى شأنُهُ وأعظم برهانُهُ چې ګرد شيان يې پيدا کړل؛ نو دا نشي کولی چې تا لوستونکی وګرځوي، بلکه قاري دې ګرځولی شي.

خَلَقَ الْاِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ ②

پيدا کړی يې دی انسان له ټوټو د ترېليو شويو وينو څخه.

تفسير: په کلکه وينه کې نه حس دی نه شعور، نه علم دی نه ادراک، يواځې لايعقل جماد دی، بيا هغه الله تعالى دې لايعقل جماد ته عقل او پوهه ورکړه، نو آيا همغه الله تعالى يو عاقل کامل او يو اُمّي قاري کولی نشي؟ بلکه کولی يې شي !، تر دې ځايه پورې د قرائت امکان ثابتول وو، چې الله تعالى ته هيڅ مشکل نه دي چې تا د اميتوبه قاري وګرځوي، وروسته د هغه په فعليت او وقوع باندې متنبّه کوي.

اِقْرَاْ وَرَبُّكَ الْاَكْرَمُ ③

ولوله (ای محمده ! قرآن) حال دا چې رب ستا لوی کريم دی (پر ټولو کريمانو)

تفسیر: یعنې په هغه شان سره چې ستاسې تربیت شوی دی، له هغه څخه ستاسې کامل استعداد او پوره لیاقت ښکاره دی، کله چې دلته په استعداد کې څه قصور نشته، او الله د لوی فضل خاوند دی، بلکه هغه د ګردو کریمانو څخه لوی کریم دی، بیا به نو د حق د ښوونې په وصول کې څه مانع وي؟ او خامخا همداسې یې کوي.

الَّذِىْ عَلَّمَ بِالْقَلَمِ ۝۴

هغه (رب پالونکی) چې ښوولی یې دی (خط انسان ته) په قلم سره.

عَلَّمَ الْاِنْسَانَ مَا لَمْ یَعْلَمْ ۝۵

ښوونه یې کړې ده انسان ته د هغو شیانو چې دی پرې نه پوهېده (پخوا له ښودلو).

تفسیر: یعنې دا انسان وړوکي چې له مور څخه پیدا کیږي په هیڅ شي نه پوهیږي، بیا نو هغه ورو ورو څوک پوهوي، هغه قدیر رب چې له جاهل انسان څخه عالم جوړوي؛ خپل یو امي بنده به نه یواځې کامل عالم کړي، بلکه د ګردو عالمانو سردار یې ګرځوي.

كَلَّآ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَیَطْغٰۤى ۝۶ اَنْ رَّاٰهُ اسْتَغْنٰى ۝۷

رښتیا ده دا خبره، بېشکه انسان خامخا سرکشي کوي. د دې لامله چې وینې ګڼې خپل ځان بې پروا (په مال سره).

تفسیر: یعنې د بني آدم اصل خو دومره دی چې له تړلې وینې څخه جوړ دی، چې په اول کې محض جاهل وي، وروسته الله تعالی ورته پوهه ورکړي، مګر دی پخپل اصلي حقیقت باندې هیڅ نه پوهیږي، د دنیا په مال او دولت باندې مغروریږي، او د الله تعالی له احکامو څنې سر غړوي، او داسې یې ګڼي چې زه د هیچا پروا نه لرم.

اِنَّ اِلٰى رَبِّكَ الرُّجْعٰى ۝۸

بېشکه رب ستا ته (ای انسانه) بېرته ورتلل دي.

تفسیر: یعنې په اول کې هم هغه الله تعالی ای انسانه ته یې پیدا کړی یې، او آخر ته هم د همغه په لوري په آخرت کې ستا ورتګ دی، او هلته به د دغو طاغیانو منکرانو تکبّر او لویي او د ځان هېرولو حقیقت ښکاریږي.

اَرَءَیْتَ الَّذِیْ یَنْهٰى ۝۹ عَبْدًا اِذَا صَلّٰى ۝۱۰

آیا وینې ته هغه (ابو جهل) چې منع کوي بنده (محمد) کله چې لمونځ کوي.

تفسیر: یعنې دا تمرّد او سر غړول وګوره چې دی پخپله هم د خپل پروردګار په دربار کې سر نه ښکته کوي، او د عبادت توفیق یې ور په برخه نه دی، نو که بل بنده الله تعالی ته سجده ږدي؛ هغه ته هم کتی نه شي، په دې آیتونو کې لعین ابو جهل ته اشاره ده، ځکه چې هغه به کله رسول الله صلی الله علیه وسلم په لمانځه کې ولید؛ نو خپله خوله به یې شلوله، او تخویف او تهدید به یې کاوه، او زیار به یې کوو چې هغوی ته په هر ډول چې وي څه نه څه ضرر ورسوي.

أَرَءَيْتَ إِن كَانَ عَلَى الْهُدَىٰٓ ﴿١١﴾ أَوْ أَمَرَ بِالتَّقْوَىٰٓ ﴿١٢﴾ أَرَءَيْتَ إِن كَذَّبَ وَتَوَلَّىٰٓ ﴿١٣﴾

آیا وینې ته که چېرې وی (دا بنده) په لارې سمې صافې باندې. یا امر حکم کوي خلقو ته په تقوی سره. آیا وینې ته که (دا منع کوونکی) تکذیب (د رسول الله) کوي او مخ ګرځوي له ایمانه (نو جزاء به مومي سم له خپل حال او اعمال سره).

أَلَمْ يَعْلَم بِأَنَّ اللَّهَ يَرَىٰ ﴿١٤﴾

آیا نه پوهیږي دغه (منکر کافر) په دې چې بېشکه الله وینې (اعمال د ده نو جزاء به پرې ورکړي؟).

**تفسیر:** یعنې د هغه رټلي ملعون هغه شرارتونه او د دې ښه بنده دا خشوع او خضوع دواړه پاک الله وینې.

كَلَّا لَئِن لَّمْ يَنتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ ﴿١٥﴾

داسې نه ده وړ (لایق)، قسم دی که نه شو منع دی (له بد عمله)؛ نو خامخا به یې سخت راکاږو په وینښتو د وچولي (تندي) سره.

**تفسیر:** یعنې پرېږده ! هغه منکر کافر په دغو ګردو خبرو باندې ښه پوهیږي، خو بیا له خپل شرارت څخه لاس نه اخلي، ښه اوس ښه غوږ وباسه ! که دوی له خپلو شرارتونو څنې لاس وانه خیست؛ نو مونږ به هم هغوی لکه د څاروو او ذلیل بندیانو غوندې د وچولي (تندي) له وینښتو او څڼو څخه نیولي د دوزخ په لوري یې راکاږو.

نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ ﴿١٦﴾

په داسې وچولي (تندي) سره چې دروغجن خطا کار دی(خاوند یې).

**تفسیر:** یعنې د هر چا په سر باندې چې دا څنې وي؛ نو د هغه سر به له دروغو او ګناهونو څنې ډک وي، ګواکې د هغوی ګناهونو او دروغو به د هغوی د سر په وینښتو کې سرایت کړی وي.

فَلْيَدْعُ نَادِيَهُ ﴿١٧﴾ سَنَدْعُ الزَّبَانِيَةَ ﴿١٨﴾

پس راودې بولي اهل د مجلس خپل. ژر ده چې مونږ به هم راوبولو ملائکې سختې د عذاب.

**تفسیر:** یو ځلې ابو جهل ولید چې رسول الله صلی الله علیه وسلم لمانځه ته روان دی، نو په مخ کې یې ورته ودرېد، او غوښت یې چې دوی له لمانځه څخه ستون کړي، دوی په سختۍ سره ورسره خبرې وکړې، نو هغه وویل: «ته خبر نه یې چې په مکې کې څما جرګه لویه ده»، نو دلته داسې فرمایلي شوي دي: «چې اوس هغه د خپلې جرګې ملګري دې وغواړي، چې مونږ د هغوی د هېداد او سزا ورکولو ته د عذاب ملائکې راغواړو، ولیده شي چې څوک بریالي کیږي»، لکه چې څو ورځې وروسته د «بدر» په ډګر کې یې ولید، چې د اسلام مجاهدینو به په څه ډول هغه راکشاوو، د «بدر» په «قلیب» او کوهي کې یې وغورځاوه، دا وو د هغه عارضي کشول، خو اصلي راکشول به یې د آخرت په میدان کې وي، چې د دوزخ پرښتې به هغه په ډېر ذلّت سره راکشوي، او په جهنّم کې به یې غورځوي.

كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ ۩ ﴿١٩﴾

نه ده داسې لکه چې وايي، مه وړه فرمان د ده (خبره يې مه منه)، او سجده لمونځ کوه، او نژدې شه (الله ته په طاعت سره).

تفسير: يعني تاسې د هغوی پروا هيڅ ونه کړئ !، او د هغوی خبرو ته غوږ مه ږدئ !، چېرې مو چې زړه شي؛ په ډېره خوښۍ سره د الله تعالى عبادت کوئ !، او هر کله د هغه لوی دربار ته په سجده سر ږدئ ! او د هغه پاك الله ذات قرب او لا نژدېوالى ځان ته ګټئ !، په حديث کې دي: «بنده له ګردو حالتونو څخه په سجده کې زيات خپل الله تعالى نه نژدې کيږي».

تمت سورة العلق بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ القَدْرِ

«د (القدر) سورت مكي دی، (۵) آيته يوه ركوع لري، په تلاوت كې (۹۷) او په نزول كې (۲۵) سورت دی، وروسته د «عبس» له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكی دی.

إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ ﴿١﴾

بېشكه مونږ نازل كړی مو دی دغه (ټول قرآن) په شپه د قدر كې.

**تفسير:** يعنې قرآنكريم له لوح محفوظ څخه د دنيا پر اسمان د قدر په شپه كې نازل كړ شو، او ښايي په همدغې شپې كې د دنيا له اسمان څخه په محمد صلى الله عليه وسلم باندې يې هم نزول شروع شوی وي، په دې موضوع څه مضمون د (دُخان) په سورت كې ليكلی شوی دی، هلته دې ولوست شي.

وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ ﴿٢﴾ لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ﴿٣﴾

او څه شي پوه كړی يې ته (ای محمده !) چې څه ده شپه د قدر (د عزّت او شرافت له پلوه؟). شپه د قدر خير غوره ده له زرو مياشتو څخه.

**تفسير:** يعنې په دې شپې كې نيكي كول داسې دي لكه چې تر زرو مياشتو پورې سرې نيكي كړې وي، بلكه زيات له دې څخه هم.

تَنَزَّلُ ٱلْمَلَٰٓئِكَةُ وَٱلرُّوحُ فِيهَا بِإِذْنِ رَبِّهِم

نازلېږي ملائكې او روح په دغه شپه كې په اذن حكم د رب د هغوی.

**تفسير:** يعنې د الله تعالى په حكم روح القدس جبريل عليه السلام د ډېرو پرښتو په هجوم كې رانازلېږي، ځكه چې پرښتې د رحمتونو او بركتونو په وخت كې نازلېږي، ممكن دي له «روح» څخه برسېره پر ملائكو كوم بل مخلوق مراد وي، په هر حال په دې بختورې شپې كې د باطني ژوندون او روحاني خير او بركت يو خاص نزول دی.

مِّن كُلِّ أَمْرٍ ﴿٤﴾ سَلَٰمٌ

لپاره د هر كار (ټاكلي «مقرر» شوي په دغه راتلونكي كال كې). امان سلامتيا ده (له هر آفته).

**تفسير:** يعنې د عالم د نظام په نسبت كوم كارونه چې په دې كال كې مقدّر وي؛ د هغو د نفاذ د تعيين لپاره پرښتې راځي، لكه چې د (دُخان) په سورت كې وليكل شو، يا له ﴿مِّن كُلِّ أَمْرٍ﴾ څخه به د خير امر مراد وي، يعنې له اسمان څخه هر راز د خير امور له ځان سره اخلي، او د ځمكې په لوري راښكته كيږي، والله أعلم.

﴿سَلٰمٌ﴾: «امان سلامتيا ده له هر آفته، يا نه ده دغه شپه مګر خو سلامتيا ده له آفاتو او بلياتو نه»، يعنې هغه شپه د امن، هوسايي، ډاډينې (تسكين) او د زړه د خوښۍ شپه ده، په دغې شپې كې د الله جل جلاله خاص بندګان په يوه عجيب او غريب طمأنيت او لذّت او حلاوت سره پخپلو عباداتو كې مصروف او مشغوليږي.

﴿هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ ۝٥﴾

دغه شپه ده تر وخته د ختلو د سبا پورې (د سلامتيا، فضيلت، بركت، كرامت).

تفسير: يعنې له ماښامه تر سحر پورې په ټوله شپه كې همدا سلسله جاري ده، نو ځكه دا شپه له سره تر پايه پورې مباركه او بختوره ده.

تنبيه: له قرآن مجيد څخه راڅرګنديږي (راښكاره كيږي) چې هغه شپه په رمضان شريف كې ده، ﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ﴾ او حديث راښكاروي چې دا شپه د رمضان په وروستني عشره كې ده، په تېره بيا د دې عشرې په طاقو شپو كې د قدر شپې لټول په كار دي، بيا د طاق په شپو كې د اويشتم (۲۷) په شپې باندې زيات ګمان كاوه شي والله أعلم، ولې زياتو عالمانو داسې تصريح كړې ده چې د قدر شپه د تل لپاره په يوه عشره او په يوه نېټه كې نشي ټاكلی، امكان لري چې په يو رمضان كې يوه شپه او په بل رمضان كې بله كوه شپه وي.

تمّت سورة القدر بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الْبَيِّنَةِ

«د (البينة) سورت مدني دی (۸) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۸) په نزول کې (۱۰۰) سورت دی، وروسته د (الطلاق) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنفَكِّينَ حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝١

نه وو هغه کسان چې کافران شوي دي له اهل د کتابو او له مشرکانو جلا کېدونکي له خپل دين نه تر هغه پورې چې راغلې دوی ته حجّت روښانه.

تفسیر: یعني کافران د اهل کتابو او مشرکینو د خپل دین پرېښودونکي نه وو تر دې چې ښکاره او روښانه دلائل ورته راغلل، چې هغه د الله تعالی رسول دی، چې د دین احکام یې ورته ښودل، لکه چې وروسته یې وضاحت فرمايي:

رَسُولٌ مِّنَ اللَّهِ يَتْلُو صُحُفًا مُّطَهَّرَةً ۝٢

چې رسول دی له طرفه د الله لولي دغه (رسول الله پر دوی) صحیفې پاکې کړی شوې (له باطله).

تفسیر: د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له بعثت څخه وړاندې د ټولو ادیانو تابعین خراب او هر یو پخپلو غلطیو باندې مغرور وو، او په دې وخت کې دا پکار وو چې کوم حکیم، ولي، لوی عادل باچا یا کوم لوی سړی دوی وپوهوي، او په سمه لاره یې راولي، او دا کار ممکن نه وو، تر دې چې داسې یو عظیم القدر پیغمبر رانشي چې له هغه سره د پاک الله مقدّس کتاب او لوی مدد وي، چې د څو کلونو په منځ کې ټول ملك د اسلام په نور ډك کړي، او پخپل زبردست تعلیم او لوی همّت او عزیمت سره د ګردې دنیا مخ د وحدانیت او حقّانیت په لوري وګرځوي، لکه چې هغه د الله تعالی رسول او استاځی د پاك الله د کتاب په لوستلو راغی چې په پاکو پاڼو کې یې لیکلی شوی دی.

فِيهَا كُتُبٌ قَيِّمَةٌ ۝٣

په هغوی کې لیکلی شوي دي سم احکام (مضبوط کتابونه چې په کې نشته هیڅ خطایي).

تفسیر: د قرآنکریم هر سورت ګواکې یو مستقل کتاب دی، یا دا مطلب چې هغه عُمده کتابونه چې پخوا له دې نه راغلي دي، د هغوی ضروري مطالب په دې کتاب کې شته، یا به له ﴿كُتُبٌ قَيِّمَةٌ﴾ څخه مراد نور علوم او مضامین وي، یعنې د هغو علومو مضامین پوره دُرست صحیح او ډېر مضبوط او معتدل دي.

وَمَا تَفَرَّقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِن بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَةُ ۝٤

او نه وو سره مختلف شوي هغه کسان چې ورکړی شوي وو دوی ته کتاب مګر وروسته له هغه چې راغلی دوی ته حجّت روښانه (چې محمد دی یا قرآن).

تفسير: يعنې په دې رسول او په دې كتاب كې هيڅ ځاى د شك او شبهې نشته، خو سره له هغه اهل د كتاب عمدًا عناد، ضد او مخالفت ورسره كوي نه د شك او شبهې له پلوه، دوى دوه ډلې شوي دي، يو هغه چې پخپل ضد او انكار كې ټينګ ولاړ دي، او بل هغه چې د حق او انصاف له لوري يې په اسلام باندې يقين او ايمان راوړى دى، ښه خو به دا وه چې په هغه پيغمبر آخر الزمان باندې چې دوى د هغو په انتظار كې وو؛ ګرد سره ايمان راوړى وو، او خپل ګرد اختلافات او شخړې به يې له منځه ايستلې، او ګرد به سره په يوه لاره كې رهي كېدل، مګر هغوى د خپلو عنادو او بدبختيو په سبب د وحدت او اجتماع په ځاى په مخالفت او شقاق او نفاق كې سره اخته شول، كله چې اهل د كتاب داسې دي؛ د ناپوهانو مشركانو احوال به څه وي؟.

وَمَآ أُمِرُوٓا۟ إِلَّا لِيَعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ ٱلدِّينَ حُنَفَآءَ

حال دا چې امر حكم نه وو وركړى شوى دوى ته په تورات او انجيل كې مګر وركړى شوى وو چې عبادت وكړي دوى د الله په داسې حال كې چې خالص كوونكي وي الله لره دين له شركه او نفاقه په داسې حال كې چې راګرځېدونكي وي له باطله حق ته.

تفسير: يعنې له هر راز باطلو او دروغو څخه جلا شوي خالص د واحد الله تعالى بندګي وكړي !، او د حنيف ابراهيم عليه السلام په شان له هر چا او هرې خوا څخه علاقه شكولي د همغه يوه مالك الملك بندګان شي !، او د تشريع او د تكوين هيڅ يوه شُعبه او څانګه او نور شيان مستقل او خپلواك (اختيارمند) ونه ګڼي.

وَيُقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤْتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ۚ وَذَٰلِكَ دِينُ ٱلْقَيِّمَةِ ۝٥

او (بل دوى مأمور دي په دې چې) قائموي سم اداء كوي (سره له ټولو حقوقو) لمونځ، او وركوي زكات، او دا (مأمور به شيان) دين دى محكم (مستقيم چې هيڅ كوږوالى په كې نشته).

تفسير: يعنې دا شيان په هر دين كې غوره او منلي شوي دي، چې د هغو شيانو تفصيل همدغه پيغمبر محمد صلى الله عليه وسلم هم راكوي، بيا نو الله تعالى ته دغه خبره ښه معلومه ده چې له داسې صافې ښوونې او تعليم څخه ولې دوى ګرځي؟ او ترې وحشت كوي؟.

إِنَّ ٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ مِنْ أَهْلِ ٱلْكِتَـٰبِ وَٱلْمُشْرِكِينَ فِى نَارِ جَهَنَّمَ خَـٰلِدِينَ فِيهَآ ۚ

بېشكه هغه كسان چې كافران شوي دي له اهل د كتابو او مشركان؛ وي به په اور د دوزخ كې (په قيامت كې) چې تل به وي دوى په هغه (جهنّم) كې.

تفسير: يعنې د پوهې او د علم دعوى كوونكي كه اهل الكتاب وي يا جاهل مشركان كله چې د حقانيت او وحدت څخه مخ واړوي او انكار ترې وكړي؛ د هغو ګردو پاى او انجام همغه دوزخ دى، چې هيڅ كله به له هغه نه خلاصيږي.

أُو۟لَـٰٓئِكَ هُمْ شَرُّ ٱلْبَرِيَّةِ ۝٦

دغه كسان هم دوى دي ډېر بد د خلقو.

تفسير: يعنې له حيواناتو څخه ډېر خوار ذليل او خراب دي، لكه چې د «فرقان» په سورت كې داسې يو آيت لولو: ﴿إِنْ هُمْ إِلَّا كَٱلْأَنْعَـٰمِ ۖ بَلْ هُمْ أَضَلُّ سَبِيلًا﴾

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ ۝٧

بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه په دنیا کې)؛ دغه کسان همدوی دي ډېر ښه د خلقو.

**تفسیر:** یعنې هغه کسان چې په ګردو رسولانو او کتابو باندې یقین کوي، او په ښو کارونو کې لګیا دي؛ نو دوی ښه خلق دي.

جَزَاؤُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ جَنَّاتُ عَدْنٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ

جزاء عوض د دوی په نزد د رب د دوی جنّتونه د ابدي هستوګنې دي، چې بهیږي له لاندې (د ماڼیو او ونو) د هغو (د اوبو د شودو د شاتو او د پاکو شرابو) ویالې، تل به وي دوی په هغو (جنّتونو) کې همېشه (تر ابده)، راضي به وي الله له دغو (مؤمنانو څخه په طاعت سره).

**تفسیر:** یعنې د جنّت د باغونو او ویالو څخه برسېره د مولی رضا هم د دوی په برخه کیږي، چې د خوښۍ اصلي روح همدا دی.

وَرَضُوا عَنْهُ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ رَبَّهُ ۝٨

او راضي به وي دوی له هغه (الله څخه په ثواب)، دا (درجه) هغه چا لره ده چې ویریدلی دی له ربه خپله.

**تفسیر:** یعنې دا لوړ مقام هر چا ته په لاس نه ورځي، او دا یواځې د هغو بندګانو برخه ده چې د خپل پروردګار له عذابه ویریږي، او هغې شیانو ته هیڅ نه ورنژدې کیږي چې په هغو کې د الله تعالی د عصیان او نافرمانۍ تصوّر کېدی شي.

تمّت سورة البينة بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الزَّلزَالِ

«د (الزّلزال) سورت مدني دی، (۸) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۹۹) په نزول کې (۹۳) سورت دی، وروسته د «النساء» له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا زُلۡزِلَتِ الۡأَرۡضُ زِلۡزَالَهَا ①

کله چې وخوځوله شي ځمکه په خوځېدلو سختو خپلو سره.

تفسیر: یعنې الله تعالی به ګرده ځمکه په سختو او خورا ویروونکیو زلزلو او رپېدلو سره وخوځوي، چې د هغې له اغېزې او اثر څخه به هیڅ مانۍ او عمارت او هیڅ یو غر یا ونه او نور شیان پر ځمکه باندې روغ نه پاتې کېږي، او ګرد هسک (اوچت) او ټیټ به سره برابرېږي، تر څو د حشر میدان صاف او پاک او یو برابر وګرځي، او دا ګردې پېښې به په قیامت د دویمې نفخې د پو کولو په وخت کې پیښېږي.

وَأَخۡرَجَتِ الۡأَرۡضُ أَثۡقَالَهَا ②

او د باندې راوباسي ځمکه درانه شیان له خپله منځه.

تفسیر: یعنې په دې وخت کې ځمکه هر هغه شی چې د دې په منځ کې وي لکه مړي، سره او سپین زر، لاجور، پیروزه، غمي او نور ګرد د باندې غورځوي، خو د دې مالونو او قیمت دارو شیانو اخیستونکي به څوک نه وي، ګرد خلق به ګوري چې په دغه ورځ کې هغه ګران شیان چې تل به په هغو باندې جنګونه کېدل؛ څومره بېقدره او بېکاره لویدلي دي.

وَقَالَ الۡإِنسَانُ مَا لَهَا ③

او وبه وایي انسان چې: څه شوي دي دغه (ځمکې) لره (چې د باندې راوباسي مدفون خپل).

تفسیر: یعنې بني آدمان وروسته د ژوندي کېدلو او زلزلې د آثارو له لیدلو څخه یا د هغو ارواحو د زلزلې په ترځ کې حیران پاتې شوي په حیرت سره به وایي: «پر دې ځمکې باندې څه وشو؟ چې په دومره زور سره خوځېږي؟ او هر شی له خپلې ګېډې څخه د باندې غورځوي؟».

يَوۡمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخۡبَارَهَا ④ بِأَنَّ رَبَّكَ أَوۡحَىٰ لَهَا ⑤

په دغې ورځې کې وبه وایي بیانوي به ځمکه خبرې خپلې (خلقو ته که د خیر وي که د شر). په سبب د دې چې رب ستا وحي امر حکم کړی دی دې ته (په ویلو بیانولو سره).

تفسیر: یعنې بني آدم چې څه ښه او بد کارونه د هغې ځمکې په سر باندې کړي وو؛ هغه ګرد (ټول) به ښکاره وي، لکه چې وایي به: هغه سړي په ما باندې لمونځ کړی وو، هغه غلا کړې وه، هغه ناحق وینه توی کړې وه، او داسې نورې خبرې.

يَوۡمَئِذٖ يَصۡدُرُ ٱلنَّاسُ أَشۡتَاتٗا لِّيُرَوۡاْ أَعۡمَٰلَهُمۡ

په دغې ورځې کې به وګرځي خلك ټولي ټولي (له موقف يا له قبورو نه په مختلفو اشكالو سره).

تفسير: يعنې په هغې ورځې كې به خلق له خپلو قبرونو څخه راوتلي د محشر په ډګر کې په راز راز ډلې جوړې كړې حاضريږي، يوه ډله به د شرابيانو وي، بله ډله به د زناكارانو وي، همداسې د ظالمانو او غلو، على هذا القياس د نورو، يا دا مطلب چې خلق له حساب څخه خلاصيږي، او د بېرته ګرځېدلو په وخت كې څه ډلې به يې جنّتيانې او څه به دوزخيانې وي، چې هره يوه به پخپل لوري رهي كيږي.

لِّيُرَوۡاْ أَعۡمَٰلَهُمۡ ۝٦

لپاره د دې چې وښودله شي هغوی ته (جزاء د) عملونو د دوی.

تفسير: يعنې د حشر په ميدان کې به د هغوی عملونه وروښولی شي، تر څو بدانو ته يو راز رسوايي او نېكانو ته يو راز سرفرازي حاصله شي، ممكن دي چې د عملونو له وربنوولو څخه د ثمراتو او نتائجو وربنوول مراد وي.

فَمَن يَعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ خَيۡرٗا يَرَهُۥ ۝٧ وَمَن يَعۡمَلۡ مِثۡقَالَ ذَرَّةٖ شَرّٗا يَرَهُۥ ۝٨

پس هغه څوك چې عمل كوي په اندازه د يوې ذرې د خير نيكى؛ نو وبه ويني (جزاء د هغه). او
هر هغه څوك چې عمل كوي په اندازه د يوې ذرې د شر بدى؛ نو وبه ويني (سزا د هغه).

تفسير: يعنې هر يوه ته د هغه د عمل ذره ذره ښه وي كه بد؛ د هغه په مخ كې ايښوول كيږي، او حق تعالى به هر هغه معامله چې د هر عمل په نسبت اجراء كوي، هغه به هم د هغوی له سترګو څخه تېروي.

تمّت سورة الزلزال بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ العَادِيَاتِ

«د (العاديات) سورت مکّي دی، (۱۱) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۰) په نزول کې (۱۴) سورت دی، وروسته د (العصر) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالْعَادِيَاتِ ضَبْحًا ﴿١﴾ فَالْمُورِيَاتِ قَدْحًا ﴿٢﴾

قسم دی په اسونو ځغلیدونکیو چې اواز ایستونکي دي له سینو څخه اواز پورته کول له ګېډو.
پس قسم دی په اسونو ایستونکیو د اور او رایستل په وهلو د سمانو تیږو (ګټو) لره.

تفسیر: یعنې په هغې تیږو یا تیږې لرونکې ځمکې باندې چې خپلې سوی (سمان او نوکان) وهي، او اور پورته کوي.

فَالْمُغِيرَاتِ صُبْحًا ﴿٣﴾

پس قسم دی په حمله کوونکیو باندې په وخت د صبا کې.

تفسیر: په عربو کې عادت وو چې په صباوون کې به یې په لوټولو باندې لاس پورې کاوه، تر څو د دوی د شپې له ورتګه دښمن خبر نشي، او سحر ناڅاپه داړه واچوي، او دا به یې خپل ځلمیتوب او مېړانه ګڼله چې په شپې کې په چا ور ونه لویږي.

فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا ﴿٤﴾

پس پورته کوي دغه (اسونه) په سمانو خپلو سره (په وخت د ځغلېدو کې) ګرد (په شاوخوا د دښمن).

تفسیر: یعنې په داسې قوّت او ګړندیتوب او چالاکی سره ځغلېدونکي اسونه چې د ګهیځ په وخت کې کله چې د شپې د سړو او شبنم د رطوبت لامله ټولې دوړې او غبار ناست وي، خو بیا هم د دې اسونو له سوو څخه ګرد او دوړې پورته شي.

فَوَسَطْنَ بِهِ جَمْعًا ﴿٥﴾

پس ننوځي دغه (اسونه) هغه وخت په منځ د ټولي (د دښمنانو د دین کې).

تفسیر: یعنې په دې وخت کې بې له وېرې او خطر د دښمن په فوج کې ننوځي.

او ځواب د دغو پاس قسمونو دا دی:

إِنَّ الْإِنسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ ﴿٦﴾

چې بېشکه (کافر) انسان له ربه خپله خامخا منکر ناشکره (د نعمتونو) دی.

تفسير: يعنې انسان د الله تعالى د نعمتونو شکر نه وباسي، او د الله تعالى له خوا د ورکړو نعمتونو نه انکار کوي، ځني سلفو ويلي دي چې: «کنود» هغه دی چې مصيبتونه شماري، او د الله تعالى نعمتونه هېروي.

وَإِنَّهُۥ عَلَىٰ ذَٰلِكَ لَشَهِيدٌ ۝٧

او بېشکه دا (انسان) پخپلې دغې ناشکرۍ خامخا شاهد کتونکی ګواه دی (يا هغه انسان هغه کار پخپل مخکښې ګوري).

تفسير: ډېرو مفسّرينو د دې جملې مطلب داسې اخيستی دی: انسان پخپلې ناشکرۍ باندې د حال په ژبه ګواه دی، دی دې لږ شانې د خپل زړه په غږ باندې هم غوږ کېږدي ! او وادې وري ! او متوجه دې شي ! چې زړه يې ورته څه وايي؟ دا وايي چې: آيا سره د دومره لورينې او ښېګڼو (بخشش) ته ناشکر يې، ځينې أسلاف د﴿وَإِنَّهُۥ﴾ ضمير د رب په لوري اړوي، يعنې د ده رب د هغه ناشکري او کفران ته ګوري.

وَإِنَّهُۥ لِحُبِّ ٱلۡخَيۡرِ لَشَدِيدٌ ۝٨

او بېشکه دا (انسان) په مينه محبّت د مال کې خامخا زيات قوي ډېر سخت دی.

تفسير: يعنې حرص، طمع، بخل امساك او نورو رذائلو هغه ړوند ګرځولی دی، د دنيا د زرو او مال په مينه کې دومره ډوب شوی دی چې خپل حقيقي منعم يې هېر کړی دی، او نه پوهېږي چې وروسته له دې نه به يې څه حال کېږي؟.

أَفَلَا يَعۡلَمُ إِذَا بُعۡثِرَ مَا فِي ٱلۡقُبُورِ ۝٩ وَحُصِّلَ مَا فِي ٱلصُّدُورِ ۝١٠

آيا پس نه پوهېږي (دا انسان) کله چې را پورته شي راووځي هغه چې په قبورو کې دي (مړي).
او محقق راښکاره کړی شي هغه (عقائد او ارادې) چې په سينو د دوی کې دي.

تفسير: يعنې هغه وخت هم راتلونکی دی چې مړي به له خپلو هديرو ځنې ژوندي ايستل کېږي، او هغه خبرې چې په زړونو کې پټې دي؛ ګردې څرګندېږي، نو هلته به کتل کېږي چې له دې مال څخه څه ګټې اخيستی شي؟ او دا نالايق او کافر به څنګه ځانونه ژغوري، که دا بې حيا په دې خبره باندې پوهېدی؛ نو هيڅ کله به د مال په مينه کې دومره نه ډوبېدل، او داسې حرکتونه به يې نه کول.

إِنَّ رَبَّهُم بِهِمۡ يَوۡمَئِذٖ لَّخَبِيرُۢ ۝١١

بېشکه رب د دوی په دوی باندې په دغې ورځې کې خامخا ښه پوه خبردار دی (نو موافقه جزاء به پرې ورکړي).

تفسير: يعنې که څه هم د الله علم هر وخت د بندګانو پر پټه او ښکاره باندې محيط دی، خو پرله پسې د ده علم او پوهه پر بندګانو ظاهرېږي، او هيچا ته ځای د دې خبرې نه پاتې کېږي چې له هغې څخه انکار وکړي.

تمّت سورة العاديات بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ القَارِعَة

«د (القارعة) سورت مکي دی، (۱۱) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۱) په نزول کې (۳۰) سورت دی، وروسته د (قریش) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

اَلْقَارِعَةُ ۝١ مَا الْقَارِعَةُ ۝٢ وَمَآ أَدْرٰىكَ مَا الْقَارِعَةُ ۝٣

(هغه) ټکوونکې (د زړونو، ورځ د قیامت). څه ده هغه ټکوونکې (د زړونو؟، قیامت). او څه شي پوه کړی یې ته چې څه ده هغه ټکوونکې (د زړونو، قیامت).

تفسیر: له (القارعة) څخه مراد قیامت دی، چې زړونه به له وېرې او فزع څخه سخت ټکانونه په کې خوري، او غوږونو ته د ډېرو سختو غږونو له اورېدلو څخه ربړ پيښيږي، مطلب دا دی چې د قیامت د حادثې د دې ويرونکې منظرې او نندارې څه بیان وکړ شي، یواځې د هغو د ځينو آثارو او نښو څه خبرې لاندې ويلی کيږي چې له هغو څخه د هغې د شدّت او د سختۍ اندازه لګولی شئ.

يَوْمَ يَكُونُ النَّاسُ كَالْفَرَاشِ الْمَبْثُوثِ ۝٤

(ټکوي به زړونه) په هغه ورځ کې چې ګرځي خلق لکه واړه پتنګان خواره کړی شوي (يو په بل ختونکي).

تفسیر: یعنې هر يو به په يوه لوري په بې تابۍ او وارخطايۍ سره منډې وهي او ځغلي، ګواکې دا تشبیه له وړو پتنګانو سره د ضعف، کثرت، حرکت، بې انتظامۍ او بې تابۍ له پلوه ورکړی شوې ده.

وَتَكُونُ الْجِبَالُ كَالْعِهْنِ الْمَنْفُوشِ ۝٥

او وبه ګرځي غرونه (له هيبته په دغې ورځې کې) لکه وړۍ رنګينې شيندلی شوې (د ندّاف په لينده).

تفسیر: یعنې لکه چې ندّاف او ډانډس پخپل ډينډت او لينده سره پنبه یا وړۍ وهي او پرسوي يې، او له هغو څخه د حجم په لحاظ يو لوی شی جوړوي، او بيا په يو يو کولو او لړ ښورولو سره هغه الوځي، او يوه خوا بل خوا يې رغړوي، همداسې به د قیامت په ورځ کې غرونه هم الوځي، او سره متفرق کيږي به، او په رنګ ورکړيو شويو وړيو سره به يې ځکه تشبیه ورکړی شوې وي؛ چې هغه ډېرې کمزورې او سپکې دي.

فَأَمَّا مَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِينُهُ ۝٦ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ ۝٧

پس هر چې هغه څوک چې درونند شي (په دغې ورځې کې) وزن (د عملونو، یا اعمال) د ده؛ نو هغه به وي په ښه ژوندون چې راضي به وي (په جنّت کې).

**تفسیر:** یعنې د هر چا عمل چې درونډ وي؛ هغه به په هغې ورځې کې په زړه پورې خوښي او هوساینې او آرامی کې وي، که کوم عمل په لیدلو کې ډېر لوی عمل ښکاري؛ خو په منځ کې یې د ایمان اغېزه (اثر)، د اسلام اثر، د اخلاص روح نه وي؛ نو هغه عمل د الله تعالی په دربار کې څه وزن او درونډوالی نه لري، لکه چې د (کهف) د سورت په (۱۲) رکوع کې (۱۰۵) آیت څمونږ دغه تفسیر کې داسې راغلي دي: ﴿فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا﴾

وَأَمَّا مَنْ خَفَّتْ مَوَازِينُهُ ﴿٨﴾ فَأُمُّهُ هَاوِيَةٌ ﴿٩﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا هِيَهْ ﴿١٠﴾ نَارٌ حَامِيَةٌ ﴿١١﴾

او هر چې هغه څوک چې سپک شي وزن (د عملونو یا اعمال) د ده؛ نو ځای د اوسېدلو د ده به هاویه وي. او څه شي پوه کړې ته چه څه ده دغه (هاویه). اور دی خورا تود (چې منکران په کې پړمخې غورځولی کیږي).

**تفسیر:** یعنې هغه عذاب چې په دغې طبقې کې شته د ځینو سړیو په فکر کې نشي راتلی، نو بس دومره وپوهېږئ چې یو اور دی ډېر تود چې سره خوټیږي، او داسې سوځوونکی دی چې د هغه په مقابل کې بل اور ته تود نه وایه شي، الله مو دې له دې اوره او له نورو ربړو څخه پخپل فضل او مهربانی سره وساتي !.

تمّت سورة القارعة بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ التَّكَاثُرِ

«د (التکاثر) سورت مکي دی، (۸) آيته يوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۲) په نزول کې (۱۶) سورت دی، وروسته د (الکوثر) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

أَلۡهَىٰكُمُ ٱلتَّكَاثُرُ ۝١ حَتَّىٰ زُرۡتُمُ ٱلۡمَقَابِرَ ۝٢

مشغول کړي يئ تاسې (له عبادته) فخر کولو (يو له بله په ډېروالي د مال، اولاد او قام). تر هغه پورې چې ورشئ هديرو ته (مړه شئ، خښ شئ).

تفسير: يعنې د مال او د اولاد د کثرت او د دنيا د مال او د شتو حرص سړی په غفلت کې اچوي، نه د الله تعالی د لورينې فکر ورته پرېږدي چې راشي، نه د آخرت په خيال کې لوېږي، پس شپه او ورځ په همدې فکر کې لګيدلی وي، په هر ډول چې کيږي ښايي ځما مال او شته را زيات شي، او کور کهول مې له ګردو کورنيو او کهولو څخه ښه او لوړ وي، لا دا د غفلت پرده له مخه يې نه وي لرې شوې چې مرګ ورته راورسيږي، کله چې په قبر کې کېښود شي؛ نو هلته ورښکاريږي چې په سخت غفلت او هېره کې لوېدلی وو، او هغه شيان چې د څه مودې له پلوه د ده په سترګو کې ښه ښکاريده؛ وروسته له مرګه هغه ګرد هيڅ بلکه د ده د ځان نقصان ثابت شو.

كَلَّا سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ۝٣ ثُمَّ كَلَّا سَوۡفَ تَعۡلَمُونَ ۝٤

نه ده داسې وړ (لايق)، ژر ده چې پوه به شئ تاسې (پخپلې خطايې باندې). بيا بيخي داسې نه ده وړ (لايق)، ژر ده چې پوه به شئ تاسې (پخپلې خطايې باندې).

تفسير: يعنې وګورئ ! په څو څو ځلې په تأکيد تاسې ته ويل کيږي چې ستاسې دا خيال صحيح نه دی چې: «د مال او اولاد او نورو شتو ډېروالی په کار راتلونکی شی دی»، عنقريب تاسې به يې معلوم کړئ چې دا زائل او فاني څيزونه هيڅکله د فخر او مباهلت لايق نه وو، بيا وپوهېږئ چې آخرت داسې يو شی نه دی چې له هغه څخه انکار يا غفلت وکړی شي، په مخ کې به تاسې ته دا درښکاره شي چې اصلي ژوندون عيش او هوسايي په آخرت کې ده، او د دنيا ژوندون د هغې په مقابل کې پرته له يوه خوب او خيال ځنې بل شی نه دی.

كَلَّا لَوۡ تَعۡلَمُونَ عِلۡمَ ٱلۡيَقِينِ ۝٥

نه ده داسې، که تاسې پوهيدلئ (په خرابۍ د عاقبت د تکاثر او تفاخر) په علم اليقين سره (نو داسې به مو نه کول).

تفسير: ستاسې دا خيال هر ګز صحيح نه دی، که تاسې په يقيني ډول او د صحيحو دلائلو په وسيله په دې خبرې پوهېدئ چې د آخرت په مقابل کې د دنيا شيان هيڅ دي؛ نو هيڅکله به مو غفلت نه کاوه.

لَتَرَوُنَّ الْجَحِيمَ ﴿٦﴾ ثُمَّ لَتَرَوُنَّهَا عَيْنَ الْيَقِينِ ﴿٧﴾

قسم دی چې خامخا وبه وينئ تاسې هرومرو دوزخ. بيا به خامخا ووينئ تاسې هرومرو هغه (دوزخ) په سترګو د يقين سره.

**تفسير:** يعني د غفلت او د انکار نتيجه دوزخ دی، او تاسې ضرور د هغه ليدونکي يئ، ړومبی د هغه څه اثر به «برزخ» کې په نظر درشي، بيا به يې په آخرت کې په پوره ډول ووينئ، او عين اليقين به مو حاصليږي.

ثُمَّ لَتُسْـَٔلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ ﴿٨﴾

بيا به خامخا پوښتنې وشي له تاسې څخه هرومرو په دغې ورځې کې له نعمتونو هوساينو نه (چې درکړي يې وو تاسې ته په دنيا کې).

**تفسير:** يعني په هغه وخت کې به وپوښتلی شئ چې: «اوس راوښيئ د دنيا د نعمتونو او د عيش او د هوسايی حقيقت څرنګه وو؟ يا هلته پوښتل کېږي: هغه ظاهري، باطني، آفاقي، انفسي، جسماني، روحاني نعمتونه چې ما تاسې ته په دنيا کې عطاء کړي وو؛ تاسې د هغه شکر او حق په څه ډول اداء کړی دی؟ او د خپل حقيقي منعم په خوښولو کې مو تر کوم ځای پورې سعي او زيار ايستلی دی».

تمّت سورة التّكاثر بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ العَصۡرِ

«د (العصر) سورت مکّي دی، (۳) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۳) په نزول کې (۱۳) سورت دی، وروسته د (الانشراح) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَالۡعَصۡرِ ۝١ اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَفِیۡ خُسۡرٍ ۝٢

قسم دی په عصر. چې بېشکه انسان خامخا په زیان کې دی (په صرف کولو د عمر سره په فاني مطالبو کې).

تفسیر: عصر زمانې ته وایي، یعنې قسم په زمانې باندې چې د انسان عمر هم په کې داخل دی، چې دا عمر د سعاداتو او کمالاتو د ګټلو لپاره یوه لویه پنګه ده، او په کې عجائب او غرائب دي په اقسامو سره، قسم دی د مازدیګر په وخت باندې چې د دنیوي کارونو او وظیفو له پلوه یو ځان ته اهمیت او مشغولیت لري، او د لمانځه اداء یې سخته ده، ځکه چې خلق مشغول وي په دنیوي کارونو خپلو کې، او د دیانت له سببه د خورا لوی فضیلت وخت دی، تر دې چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: «د هر چا نه چې د (عصر) لمونځ فوت شي؛ لکه چې د هغه ګرد کور او د ژوندون شیان لوټ شوي وي»، یا قسم دی ځما په پاکه زمانه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم باندې چې په هغې کې د عظمی رسالت او کبری خلافت رڼا او نور ډېر ښه ځلیږي، او بهتر او غوره ده له نورو زمانو څخه، او د «والعصر» د قسم ځواب دغه دی چې:

﴿اِنَّ الۡاِنۡسَانَ لَفِیۡ خُسۡرٍ﴾ «بېشکه انسان خامخا په زیان کې دی»، له دې څخه به زیات زیان څه وي چې د واورې خرڅوونکي غوندې د هغه د تجارت رأس المال چې د هغه عزیز عمر دی؛ شیبه په شیبه (لحظه په لحظه) لږیږي، که دی په دې ژر ورتګ کې هیڅ یو داسې کار ونه کړي چې هغه یوائې د دې تللي عمر پنګه (سرمایه) وبللی شي، یا یې په درد وخوري، بلکه یو ابدي او غیر فاني متاع او د تل لپاره د کار شی وګرځي، نو زیان او خساره یې خو زیاتیږي.

اِلَّا الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَتَوَاصَوۡا بِالۡحَقِّ ۙ۬ وَتَوَاصَوۡا بِالصَّبۡرِ ۝٣

مګر (خو زیانکاران نه دي) هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او کړي یې دي ښه (عملونه)، او وصیت یې کړی وي یو بل ته په حقه سره چې ایمان دی، او وصیت یې کړی وي یو بل ته په صبر (په طاعت او مصیبت او له معصیته).

تفسیر: یعنې انسان ته د زیان څخه د ژغورلو لپاره د څلورو شیانو ضرورت دی:

(۱): په الله تعالی او په رسول الله صلی الله علیه وسلم او ټولو ایمانیاتو باندې ایمان راوړل، او د هغه په هدایاتو او وعدو باندې اخروي وي یا دنیوي؛ پوره یقین لرل.

(۲): د دې یقین اثر او اغېزه نه ښایي چې یوائې په قلب او دماغ پورې محدوده وي، بلکه ښایي چې په جوارحو کې هم څرګنده شي، او د هغه چارې او اعمال او ژوندون د ده د زړه هنداره وي.

(۳): دی پخپلې انفرادي اصلاح او فلاح باندې قناعت ونه کړي، بلکه د خپل قوم او ملك ګټې او اجتماعي مفاد هم ښايي د ده تر کتنې او نظر لاندې وي !، هر کله چې دوه مسلمانان سره ووينې؛ ښايي يو له بله سره په ورين تندي خبرې اترې وکړي، او په قول او فعل او هره معامله کې دې پرته له ديانت او صفايي څخه بل کار نه کوي !، او تل دې يو بل ته د صداقت، امانت تأکيد وينا وکړي !.

(۴): هر يوه له ښايي چې تل بل ته دا وصيت او نصيحت کوي چې د حق په معامله او د شخصي او قومي اصلاح په لاره کې چې هر څومره سختي او زيار او ربړونه ورپېښ شي، يا له طبعي مخالفې چارې په مخ ورته راشي؛ دا ګردې دې په پوره صبر او استقامت سره تحمّل کړي، او هيڅکله دې پل د نېکۍ له لارې څخه کوږ نه ږدي !، هغه خوش قسمت انسانان چې د دې څلورو اوصافو جامع او لرونکي وي، او دوی سره د خپل کمال د نورو په تکميل کې هم زيار کوي؛ نو د هغوی نوم د دنيا په صفحاتو کې تل ژوندی پاتې کيږي.

تمت سورة العصر بفضل الله تعالى ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الهُمَزَةِ

«د (الهمزة) سورت مكي دی، (۹) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۴) په نزول کې (۳۲) سورت دی، وروسته له (القیامة) د سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ لُّمَزَةٍ ①

افسوس هلاکت، یا کنده د دوزخ، یا خرابي ده هر طعن لګوونکي عیب ګر لره.

تفسیر: یعني له خپل ځان څخه نه خبرېږي، او نور حقیر ګڼي طعنې ورکوي، او د هغوی په واقعي یا غیر واقعي عیبونو پسې لویدلي وي او لټوي يې.

الَّذِي جَمَعَ مَالًا وَّعَدَّدَهُ ②

هغه (طعن لګونکی عیبګر) چې جمع کړی يې دی مال، او وار وار يې شمېرلی او ذخیره کړی يې دی.

تفسیر: یعني طعنې ورکول او عیب لټول د تکبّر منشأ ده، او د تکبّر سبب مال دی، چې د حرص لامله يې له هرې خوا ځان ته راټولوي، او بخیلان د حرص لامله هرې خوا ته لاس او پښې اچوي، او د بخل له سببه خپلې ګټې شمېرلي ساتي، او یو پول او پیسه ترې نه خرڅ کوي، زیاتره بخیل مالداران داسې دي چې هغوی خپلې نغدې څو څو ځلې شمیري، او حسابونه يې جوړوي، او له دې شمېرلو څخه هر ځلې بېل بېل خوند او مزه اخلي.

يَحْسَبُ أَنَّ مَالَهُ أَخْلَدَهُ ③

ګمان کوي چې بېشکه مال د ده به تل ژوندی لري دی.

تفسیر: یعني له دې چارو څخه دا ښکاري چې لکه دا مال هیڅ چېرې نه ورځنې جلا کیږي، بلکه تل به دی له ارضي او سماوي آفتونو څخه ساتي؟.

كَلَّا لَيُنْبَذَنَّ فِي الْحُطَمَةِ ④

نه ده داسې (بلکه مړ به شي، او خلاص به يې نه کړي دا مال له عذابه)، قسم دی چې خامخا وبه غورځولی شي هرومرو (دا جمع کوونکی) په هغه شي کې چې ماتوونکی سوځوونکی دی د هر شي.

تفسیر: یعني دا خیال بالکل چټي دی، مال خو تر هدیرې پورې هم له چا سره نه ځي، نو وروسته له هغه به څه ترې واخیست شي، ګرد مال او دولت به همداسې پاتې وي، او دا بدبخت به پورته کړي، او په دوزخ کې به يې وغورځوي.

حطمة: هغه سخت ماتوونکي اور ته وایه کیږي چې هر شی سمدلاسه بې له لوګي او اوږدو لمبو څخه وسوځوي.

وَمَآ أَدۡرَىٰكَ مَا ٱلۡحُطَمَةُ ۝٥ نَارُ ٱللَّهِ ٱلۡمُوقَدَةُ ۝٦ ٱلَّتِي تَطَّلِعُ عَلَى ٱلۡأَفۡـِٔدَةِ ۝٧

او څه شي پوه کړی یې ته، څه شی دی ماتوونکی سوځوونکی د هر شي. اور د الله دی بل کړی شوی. هغه (اور) چې خیژي پر زړونو باندې (نو سوځوي یې).

تفسیر: یعنې ښه وپوهېږئ چې دا اور د بندګانو نه دی، بلکه د الله تعالی بل کړی شوی اور دی، د هغه سوځېدل چې په بدن باندې لګیږي؛ سمدلاسه زړه ته رسیږي، بلکه یو بل ډول سوځېدل به داسې وي چې له زړه څخه شروع شوي نور بدن ته سرایت کوي.

إِنَّهَا عَلَيۡهِم مُّؤۡصَدَةٞ ۝٨

بېشکه دا اور به په دوی باندې بند کړی شوی وي.

تفسیر: یعنې کافران په دوزخ کې غورځول کیږي، بیا د دوزخ ورونه پرې تړل کیږي، او هیڅ د وتلو لار به نه وي، تل به په هغه کې پاتې او سوځیږي.

فِي عَمَدٖ مُّمَدَّدَةِۭ ۝٩

په ستنو رانښکلیو شویو اوږدو سره.

تفسیر: یعنې د اور لمبې د اوږدو اوږدو ستنو په ډول پورته کیږي، یا دا چې دوزخیان په اوږدو ستنو کې سخت تړل کیږي، چې د سوځېدلو په وخت کې هیڅ ونشي خوځېدلی، چې د دې خوا او هغې خوا له خوځېدلو د عذاب د څه سپکتیا توهم کېدی شي، او ځیني وايي: د دوزخ خوله په اوږدو اوږدو ستنو سره بندیږي، چې له یوې خوا څخه بلې خوا ته رانښکلې شوي وي، والله أعلم.

تمّت سورة الهمزة بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الفِيلِ

«د (الفيل) سورت مکي دی، (۵) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۵) په نزول کې (۱۹) سورت دی، وروسته د «الکافرون» له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

أَلَمۡ تَرَ كَيۡفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِأَصۡحَٰبِ ٱلۡفِيلِ ١

آیا نه وو لیدلی تا، نه یې خبر؟ چې څرنګه کار کړی وو رب ستا له خاوندانو د فیل سره.

تفسیر: یعني د فیل د خاوندانو سره هغه معامله چې ستاسې پروردګار وکړه؛ هغه به ضرور تاسې ته معلومه وي، ځکه چې دا واقعه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له با سعادت ولادت څخه څو ورځې پخوا شوې وه، او د ډېر شهرت له سببه چې د هر لوی او کوچني په ژبه یادېده، او د دې قرب عهد او د تواتر په بناء الله تعالی دا علم په رؤیت سره تعبیر وفرمایه.

أَلَمۡ يَجۡعَلۡ كَيۡدَهُمۡ فِي تَضۡلِيلٖ ٢

آیا نه یې وو ګرځولی (هغه) کید مکر د دوی په ګمراهۍ زیانمنۍ بطلان کې.

تفسیر: یعني هغو کسانو غوښتل چې د الله تعالی کعبه ورانه او خپله مصنوعي کعبه ودانه کړي، نو دا ونه شوه کېدی، او الله تعالی د هغوی ګردې ترڼې بېکاره او ټول تدابیر یې بې اثره وګرځول، او د کعبې شریفې د تباهۍ د فکر له سببه دوی پخپله تباه او بېکاره شول.

وَأَرۡسَلَ عَلَيۡهِمۡ طَيۡرًا أَبَابِيلَ ٣ تَرۡمِيهِم بِحِجَارَةٖ مِّن سِجِّيلٖ ٤

او راوېې لېږل په دوی باندې مرغان ټولګي ټولګي. چې ویشتل یې هغوی په کاڼو سره چې له خټو په اور پخو شویو څخه جوړ شوي وو.

تفسیر: د أصحاب فیل لنډه قصه دا ده: د حبشي د ټولواک (باچا) له خوا په یمن کې یو (ابرهه) نامې حاکم مقرر وو، هغه ولید چې د عربو ګرد خلق کعبې شریفې ته ځي، او هلته حجّونه کوي، نو ویې غوښتل چې د خلقو توجّه ځان ته ورکش کړي، نو دا تدبیر یې له ځان سره وسنجاوه چې د خپل عیسوي دین په نامه یوه لویه کتبه (عبادتخانه) جوړه کړي، چې د هر راز تکلّفاتو او د راحت او هوسایي او ساعت تېرۍ اسباب په کې غونډ کړی شوي وي، او غوښت یې چې په دې ډول به خلق اصلي کعبه پرېږدي، او د دې مکلفې او مرصّعې عبادتخانې په لوري به راځي، او د مکې د حج بیروبار به مات شي، لکه چې د یمن په یو لوی ښار کې یې چې (صنعاء) نومېږي؛ مصنوعي کعبه جوړه او ډېر مال او شته یې پرې خرڅ کړي وو، خو سره له هغه هم خلق ورته متوجه نشول، کله چې عرب په تېره قریش له دې خبرې څخه خبر شول؛ سخت خپه او په قهر شول، ځینې په قهر شوي هلته اودس ماتي ته کېناستل، ځینې وایي چې: کوم عرب اور بل کړی وو، چې د هغه کوم بڅرکی الوتلی په هغې ماڼۍ کې ولګېد، ابرهـه له دې پېښې څخه ډېر په قهر

شو، او غوټه يې کړه چې پر کعبې شريفې باندې سره له ډېرو فوجونو او يو نوميالي فيل چې (محمود) نومېده، يرغل وروړي او ورانه يې کړي، هغې عربي قبيلې چې په لاره کې يې له هغه سره مقاومت وکړ د هغوی له لاسه ماتې وکړه، او أصحاب الفيل په ډېر قوّت او ساماني سره مکې شريفې ته ورسېدل، د رسول أکرم صلى الله عليه وسلم نيکه «عبد المطلب» په دې وخت کې د قريشو سردار او د کعبې شريفې لوی متولّي وو، کله چې دوی له دې پېښې څخه خبر شول؛ ويې ويل: «خلقو ! تاسې د خپلو ځانونو ساتنه وکړئ !، د کعبې ساتنه به هغه څوک وکړي چې مالك يې دی»، کله چې ابرهه پخپل مخ کې هيڅ يو مانع ونه ليده؛ نو يقين يې راغی چې د کعبې ورانول اوس يو اسانه کار دی، ځکه چې ځما پر مخ کې هيڅ څوك مقابله کوونکي نه دي، کله چې مکې معظمې ته نژدې د «مُحسّر» وادي ته ورسېد چې د يوې کندې نوم دی؛ نو د لوی سيند له لوري د شنو او ژېړو مرغانو کوچنی کوچنی ډلې ورښکاره شوې، چې د هغوی په مښوکو او منګلو کې وړوکې کنکرې وې، چې جوړې شوې وې له ختو څخه په پخولو سره لکه خښتې يا قدرتي وې لکه کوتکانې، دې عجيب او غريب مرغانو ټولی ټولی کنکرې پر لښکر ورولې، د الله په قدرت به دا د کنکرو ويشتل کټ مټ (هوبهو) لکه د ټوپکو پر هغوی باندې اثر او اغېزه کوله، او په هر چا چې لګېده له بلې خوا به يې وتله، او عجيب ډول بوسي ماده به يې پرېښوده، ډېر ډېر لښکر يې هلته مړه شول، هغه چې وتښتېدل په نورو ربړو (تکليفونو) سره اخته او په کې مړه شول، ځيني وايي: دا پېښه د محمد رسول الله صلى الله عليه وسلم له ولادت څخه پنځوس ورځې پخوا شوې ده، ځيني وايي: دا پېښه په هغې ورځې کې شوې ده چې محمد صلى الله عليه وسلم په کې تولّد شو، ګواکې دا يوه اسماني نښه د دوی د بختور راتګ ده، او يوه غيبي اشاره ده چې الله تعالی د خپل کور او د بندګانو په فوق العاده ډول سره هم ساتنه کوي، او د دې کور متولّي هم له نورو څخه سره د خپل مقدّس پيغمبر صلى الله عليه وسلم په ښه شان ساتي، او دښمنانو ته هسې موقع نه پرېږدي چې دوی کعبې شريفې يا د کعبې شريفې رښتينو خادمانو ته څه تکليف او ضرر ورپېښ کړي.

فَجَعَلَهُمۡ كَعَصۡفٖ مَّأۡكُولِۭ ۝٥

نو ويې ګرځاوه دغه لښکر په شان د وښو خوړليو شويو پايمال کړيو شويو.

تفسير: په شان د هغو وښو او پاڼو د فصل يا خوړلې شوې ګياه چې غوايي، غوا او نور حيوانات يې خوري او پاتې يې په اخور کې وي، يعنې داسې تيت او پرك او منتشر بد صورت مبتدل بېکاره او ټکر ټکر شول، لکه پاتې واښه د حيواناتو.

تمّت سورة الفيل بفضل الله تعالى ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ قُرَيْشٍ

«د (قُریش) سورت مکي دی، (۴) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۶) په نزول کې (۲۹) سورت دی، وروسته د «التین» له سورت ته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

لِاِيْلٰفِ قُرَيْشٍ ۝١ اٖلٰفِهِمْ رِحْلَةَ الشِّتَآءِ وَالصَّيْفِ ۝٢ فَلْيَعْبُدُوْا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ ۝٣ الَّذِيْٓ اَطْعَمَهُمْ مِّنْ جُوْعٍ ۙ وَّاٰمَنَهُمْ مِّنْ خَوْفٍ ۝٤

له جهته د انس او الفت د قریشو یو له بل سره. له جهته د انس او الفت د دوی په سفر د ژمي کې او (په سفر د) اوړي کې. نو ښايي چې بندګي وکړي دوی رب د دې کوټې (کعبې) ته هغه (رب) چې طعام خواړه یې ورکړي دي دوی ته په لوږې کې، او امن یې ورکړی دی دوی ته له خوف وېرې څخه.

تفسیر: یعنې په مکّې کې غله او نور خواړه نه پیدا کېده، نو ځکه د قریشو داسې عادت وو چې په هر کال کې به دوی دوه ځلې سفر کاوه، د ژمي په وخت کې د یمن په لوري چې تود دی، او په اوړي کې د شام په لوري چې یخ او زرغون ملک دی، د هر ځای خلقو به دوی د اهل حرم او د بیت الله د خادمانو په نامه سره پېژندل، او د دوی به یې ډېر عزّت او احترام او خدمت کاوه، او د هغوی ځان او مال ته به یې لاس نه غځوو، نو ځکه دوی به له دې تګ او راتګ څخه په زړه پورې ګټې اخیستلې، او بیا په امن، اطمینان او ډاډېنه سره پخپلو کورونو کې کېناستل، خوړل او خورول به یې، د حرم په شاوخوا کې به د غلا، داړې، لوټ او تالا شورماشور وو، خو پخپله په حرم شریف کې به د هغه احترام په سبب قراره قراري وه، او د قریشو خلقو په ډېرې هوسایۍ او ارامۍ سره خپل ژوندون تېروه، نو د همدې انعام تذکره، یادونه دلته شوې ده، چې تاسو ته مې طعام او ډوډۍ درکړه، او امنیت، طمانیت، سکون او هوسایي مو دروبښله، او د أصحاب الفیل له یرغل او تعرّض څخه مو وساتلئ، نو تاسې ولې د دې کور د څښتن الله تعالی بندګي نه کوئ؟ او د هغه رسول ته ولې ربړونه پېښوئ، آیا دا ډېره بې انتهاء ناشکري او احسان هېرول نه دي؟ که په نورو خبرو نه پوهېږئ نو د دې ښکاره حقیقت په منلو کې چې پوهېدل یې ډېر اسان دي؛ ولې خپل ځانونه وړاندې وروسته کوئ؟.

تمت سورة قریش بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الماعُون

«د (الماعون) سورت دري رومبني آيات مكّي او نور يې مدني دي، (۷) آيتونه يوه ركوع لري، په تلاوت كې (۱۰۷) په نزول كې (۱۷) سورت دی، وروسته د «التكاثر» له سورته نازل شوی دی.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

أَرَءَيْتَ الَّذِي يُكَذِّبُ بِالدِّينِ ﴿١﴾

آيا وينې ته هغه څوك چې دروغ وايي په ورځې د جزاء باندې (يعنې دروغ يې ګڼي)

تفسير: يعنې دغه مكذّب كافر داسې وايي چې: له سره عدل او انصاف به نه كيږي، او د الله تعالى له لوري به د ښو او بدو بدل نه وركاوه كيږي، ځينو د (دين) معنى «ملّت» اخيستى دى، يعنې د حق مذهب او اسلام ملّت دروغ بولي، ګواكې مذهب او ملّت د هغوى په نزد هيڅ يو شى نه دى.

فَذَٰلِكَ الَّذِي يَدُعُّ الْيَتِيمَ ﴿٢﴾

نو (كه يې پېژنې؛ همدغه) همغه (څوك) دى چې رټي، شړي يتيم پلار مړي لره (په شړلو قبيحو سره).

تفسير: يعنې له يتيم او پلار مړي سره همدردي او خواخوږي چېرې؟ بلكه له هغوى سره په ډېره بېرحمى، غټ زړه توب، بد اخلاقي معامله كوي، او حق يې نه وركوي، او اموال يې له خپل ځان سره په ناحقه ساتي.

وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ الْمِسْكِينِ ﴿٣﴾

نو نه كوي تېزول په طعام، خواړه وركولو د مسكين باندې.

تفسير: يعنې نه دوى د غريبانو او محتاجانو خبر اخلي، او نه نورو ته ترغيب وركوي.

فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّينَ ﴿٤﴾ الَّذِينَ هُمْ عَن صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ ﴿٥﴾

پس هلاكت افسوس، كنده د دوزخ، يا خرابي ده لپاره د لمونځ كوونكو. هغه كسان چې دوى له لمانځه خپله غافله بېخبره وي.

تفسير: يعنې نه پوهيږي چې لمونځ له چا سره مناجات دى؟ او د هغه مقصد څه دى؟ او د څومره اهتمام لايق او وړ دى؟ دا به څرنګه لمونځ وي چې كله يې نه كوي، او كله يې كوي، وخت او بې وخته يې پرې وديږي، په دنيوي چارو او خبرو كې په لوى لاس وخت تنګوي، او بيا يې چې كوي هم؛ يو څو ټونګې وهي، او د ښته هيڅ فكر نه كوي چې چاته مخامخ ولاړ يم؟ د «أحكم الحاكمين» په دربار كې په څه شان حاضري وركوم؟ آيا الله تعالى يواځې ناسته ولاړه، سر په ځمكه لګول، كږېدل ويني، او (استغفر الله) ځمونږ زړونه نه ويني، آيا په دې كې د اخلاص او خشوع رنګ شته؟

په یاد یې ولرئ چې دا ګرد صورتونه په ﴿عَنۡ صَلَاتِهِمۡ سَاهُونَ﴾ کې درجه په درجه شامل دي، لکه چې ځینو اسلافو په دې تصریح کړې ده.

ٱلَّذِينَ هُمۡ يُرَآءُونَ ۝٦

هغه کسان دي چې دوی ریاکاري کوي (په عمل خپل کې، ځان ښوونه کوي خلقو ته).

**تفسیر:** یعنې یو لمونځ څه بلکه د هغوی نور عملونه هم له ریاکارۍ او نمایش څخه تش نه وي، ګواکې د دوی مقصد له خالق څخه سترګې اړول او د مخلوق خوښول دي.

وَيَمۡنَعُونَ ٱلۡمَاعُونَ ۝٧

او منع کوي دوی مال د زکات یا اسباب د معاونت امداد یو له بله.

**تفسیر:** یعنې زکات او صدقات او نور میراث خو نه ورکوي، بلکه معمولي شیان لکه لوښي، رسی، تبر، یوم، لور، غلبېل، اوبه، مالګه، اور، تار، ستن او نور هم چا ته چې ترې ویې غواړي نه یې ورکوي، چې د هغو ورکول په ګرده دنیا کې یو عام رواج دی.

تمّت سورة الماعون بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الكَوثَرِ

«د (الکوثر) سورت مکي دی، (۳) آیتونه یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۸) او په نزول کې (۱۵) سورت دی، وروسته د (العادیات) له سورته نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ ①

بېشکه مونږ درکړی مو دی تاته کوثر (ډېر خیر یا ویاله په جنّت کې).

تفسیر: یعنې په تحقیق سره ما درکړی دی تا لره ای محمده کوثر چې په وزن د (فَوْعَل) دی، په معنی د کثرت، یعنې: درکړی مې دی تا لره خیر کثیر چې علم او نبوّت، قرآن او شفاعت دی، نو د دې لفظ لاندې ګرد دیني او دنیوي دولتونه او حسي او معنوي نعمتونه داخل دي، او له دې نعمتونو څخه یو لوی نعمت «حوض کوثر» هم دی، چې په دې نامه په مسلمانانو کې مشهور دی، او د هغه په اوبو باندې به د قیامت په ورځ خپل امّت اوبه کوي.

فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ ②

نو لمونځ کوه لپاره د رب خپل او قرباني کوه !.

تفسیر: یعنې د دومره لوی انعام او احسان شکر هم ښایي لوی وي، او ښایي چې پخپل روح او بدن او مال سره پوره د خپل رب په عبادت کې مشغول او لګیا وي، په بدني او روحاني عباداتو کې له ګردو څخه لوی عبادت لمونځ دی، او په مالي عباداتو کې قرباني یو ممتاز حیثیت لري.

إِنَّ شَانِئَكَ هُوَ الْأَبْتَرُ ③

بېشکه دښمن ستا همغه دی بې بنیاده له هره خیره منقطع.

تفسیر: ځینو کفّارو به د رسول أکرم صلی الله علیه وسلم په شان کې داسې ویل: دا سړی ځوی نه لري، نو تر څو چې ژوندی وي خلق به یې نوم یادوي، خو وروسته له مرګه به یې څوک نوم اخلي؟ داسې بې هلکه سړي ته په محاوراتو کې «ابتر» وایه کېده، «ابتر» په اصل کې لنډي «دم بریده» څاروي ته وایي، د هغه چا چې تر ده وروسته کوم نوم اخیستونکی پاتې نشي، ګواکې د هغه لکۍ هم پرې شوې ده، نو قرآنکریم دا راښیي: هغه چا ته چې الله تعالی خیر کثیر عطاء فرمایلی وي؛ تر أبد الآباد پورې د هغه نوم روڼ پاتې کیږي، او هغه ته «أبتر» ویل خورا ډېر حماقت او ناپوهي ده، په رښتیا سره هغه څوک چې داسې مقدّسې او مقبولې هستی سره بغض، عناد او عداوت ولري؛ هغه له خپل ځانه وروسته څه د خیر ذکر او نېک اثر نه پرېږدي، نن چې دیارلس سوه اتیا کاله د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم له بعثت څخه تېر شوي دي، بیا هم ما شاء الله د هغه له روحاني اولاد څخه ګرده دنیا ډکه ده، او جسماني اولاده یې هم

د دوی د لوړو له خوا ډېره زياته په هر ملک کې شته، د دوی د دين صالحه آثار په عالم کې ځليږي، د دوی يادول په ښه نوم، محبت او عقيده سره د کروړونو انسانانو زړونو ته خوښي ښښي، دوست او دښمن ټول د دوی د اصلاحي چارو ستاينه کوي، او مونږ مسلمانان يې د زړه له کومې حق او رښتيا بولو، پرته له دنيا څخه په آخرت کې بيا په هغه مقام محمود کې چې دوی به هلته ودريږي، او هغه عامه مقبوليت او متبوعيت چې دوی ته علی رؤوس الأشهاد په برخه کيږي؛ هم څمونږ د افتخار ځای دی.

تمّت سورة الکوثر بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الكَافِرُونَ

«د (الکافرون) سورت مکي دی، (۶) آیتونه یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۰۹) په نزول کې (۱۸) سورت دی، وروسته د (الماعون) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ ①

ووایه (ای محمده ! چې) ای کافرانو !.

تفسیر: د قریشو څو تنو غټانو وویل: ای محمده ! راځه چې مونږ او تاسې روغه سره وکړو، تاسې تر یوه کال پورې څمونږ د معبودانو عبادت وکړئ !، بیا په دویم کال کې مونږ ستا د معبود عبادت کوو، او داسې به هر یوه ټولګي ته د بل ټولګي له دین څخه څه برخه رسیږي، محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: «زه له الله تعالی څخه له دې نه پناه غواړم، چې د یوې ثانیې له مخې هم له هغه سره بل څوک یا شی شریک وګڼم»، بیا هغوی وویل: «ښه، نو تاسې څمونږ د معبودانو مذمّت مه کوئ، نو مونږ به هم ستا د پیغمبرۍ تصدیق او ستا د معبود ستاینه (صفت) کوو»، نو په دې باندې دا سورت نازل شو، چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د کُفّارو په لویه جرګه کې ولوست، چې د هغه خُلاصه د مشرکینو له طور او طریقې څخه پوره بېزاري ښکاروي، او د هغوی څنې د تعلّقاتو د انقطاع اعلان او بېزاري څرګندوي.

لَا أَعْبُدُ مَا تَعْبُدُونَ ② وَلَا أَنتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ ③

نه کوم زه (في الحال) عبادت د هغه شي چې تاسې یې عبادت کوئ (ای کافرانو چې بُتان دي).
او نه یئ تاسې (ای کافرانو في الحال) عبادت کوونکي د هغه ذات چې زه یې عبادت کوم.

تفسیر: یعني پرته له الله څخه د هغو معبودانو چې تاسې جوړ کړي دي، زه اوس عبادت نه کوم، او نه تاسې د هغه احد او صمد الله تعالی عبادت بې د نورو له شرکت څخه کوئ چې زه یې عبادت کوم، او په راتلونکي زمانې کې هم زه ستاسې د معبودانو عبادت نه کوم.

وَلَا أَنَا عَابِدٌ مَّا عَبَدتُّمْ ④ وَلَا أَنتُمْ عَابِدُونَ مَا أَعْبُدُ ⑤

او نه یم زه عبادت کوونکی (په وروستي زمانه کې) د هغه شي چې عبادت یې کوئ تاسې. او نه یئ تاسې (ای کافرانو په وروستي زمانه کې) عبادت کوونکي د هغه ذات چې زه یې عبادت کوم (چې الله دی).

تفسیر: یعني وروسته له دې هم زه ستاسې د معبودانو عبادت کوونکی نه یم، او نه تاسې څما د دغه واحد معبود بې له شرکته عبادت کوونکي یئ، مطلب یې دا چې زه موحد یم، له شرک څخه اوس او په راتلونکي زمانې کې لرې تښتم، او تاسې سره له شرکته نه اوس، او نه په راتلونکي زمانې کې موحّد کېدی شئ، سم له دې تقریر سره په دې آیتونو کې تکرار نه پاتې کیږي.

تنبیه: ځینې علماوو دا تکرار پر تأکید باندې حمل کوي، او ځینې په ړومبنیو دوو جملو کې د حال او استقبال نفي او په وروستنیو دوو جملو کې د ماضي نفي اخلي، ځینې په ړومبنې دوو جملو کې د حال او وروستنیو دوو جملو کې د استقبال اراده ښکاره کړېده (کما یظهر من ترجمة شیخ الهند)، لیکن ځینې محققینو په ړومبنیو دوو جملو کې «ما» موصوله او په وروستنیو دوو جملو کې «ما» مصدریه ګڼلې داسې وایي: «څما او ستاسې په منځ کې نه په معبود کې اشتراک شته، او نه د عبادت په طریقه کې، تاسې خو د بتانو عبادت کوئ چې هغوی څما معبودان نه دي، او زه د هغه الله تعالی عبادت کوم چې د هغه په شان او صفت کې هیڅوک شریک کېدی نشي، او داسې واحد احد ستاسې معبود نه دی، علی هذا القیاس تاسې څرنګه چې عبادت کوئ؛ ویې کړئ !، لکه چې بربنډ د کعبې په شاوخوا کې ګرځېږئ، یا د الله تعالی د ذکر او یادولو په ځای شپیلې وهئ، زه داسې عبادت کوونکی نه یم، او همغسې چې زه یې عبادت کوم، او په ډېر خشوع او خضوع ورته مخامخ کېږم؛ تاسې د هغه توفیق نه لرئ، نو ځکه څما او ستاسې لاره بېخي جلا ده».

د دې حقیر په خیال کې داسې راځي چې: ړومبنی جمله یې د حال او استقبال د نفي لپاره کېښوده شي، یعنې زه نه اوس او نه په راتلونکې زمانه کې ستاسې د معبودانو عبادت پرستش کولی شم، لکه چې تاسې یې له ما څخه غواړئ، او د ﴿وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ مَّا عَبَدتُّمۡ﴾ مطلب د (حافظ ابن تیمیة رحمه الله) په وینا داسې واخیست شي: کله چې زه د الله رسول یم، دا څما په شان کې نشته، او نه به مې کله ممکن شي په شرعي امکان چې د شرک مرتکب شم، تر دې چې په تېرې زمانې کې چې تاسې پخوا څما له بعثته بتانو، تیږو (ګټو)، ونو او نورو ته عبادت کاوه؛ ما پرته له واحد الله تعالی څخه د بل کوم شي عبادت نه دی کړی، وروسته له دې چې د الله تعالی له لوري د وحي، د بینات، د هدی او د نورو ښوونو رڼا خوره شوه؛ کله ممکن دي چې زه په شرکیاتو کې له تاسې سره مل شم، ښایي له همدې سببه دلته په ﴿وَلَآ أَنَا۠ عَابِدٞ﴾ کې اسمیه جمله او په ما﴿مَّا عَبَدتُّمۡ﴾ کې د ماضي صیغه غوره شوې وي.

پاتې شول د کفارو احوال، نو د هغوی بیان یې په دواړو جملو کې یو شان وفرمایل: ﴿وَلَآ أَنتُمۡ عَٰبِدُونَ مَآ أَعۡبُدُ﴾ یعنې تاسې ای کفّارو ! د خپلو بدو استعداداتو او انتهایي بدبختیو په سبب د دې وړ (لایق) نه یئ چې په هیڅ وخت او هیڅ حال کې د واحد الله تعالی بې له شرکته عبادت کوونکي شئ، تر دې چې د روغې د خبرې په منځ کې هم د شرک په ځُرت کې ډوب تللي یئ.

لَكُمۡ دِينُكُمۡ وَلِيَ دِينِ ٦ ع

تاسې لره دین ستاسې دی (د شرک)، او ما لره دین (د توحید، اسلام) څما دی.

تفسیر: شاه صاحب (رحمه الله) لیکي: «یعنې هغه ضد چې تاسې کړی دی؛ څه فائده دررسوي؟ تر څو چې الله تعالی فیصله وکړي»، اوس مونږ بالکل له تاسې څخه بېزاره یو، او د هغې فیصلې په انتظار کې یو، او په هغه دین قویم چې الله تعالی مونږ ته مرحمت کړی دی؛ ډېر خوښ یو، تاسو چې د خپلو ځانونو لپاره د بدبختی هغه تګ خوښ کړی دی؛ هغه دې تاسې ته مبارک وي، هر یو فریق ته به د هغه د دود او دستور، او د راه او روش نتیجه پوره وررسیږي.

تمّت سورة الکافرون بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ النَّصۡرِ

«د (النّصر) سورت په «منی» په «حجة الوداع» کې کې نازل شوی دی، او په مدني سورتونو کې حسابيږي درې آياتونه اويوه رکوع لري، او وروستنی (۱۱۴) سورت دی په نزول کې (۱۱۰) سورت دی په تلاوت کې، وروسته د (التوبة) له سورته نازل شوی دی».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

إِذَا جَآءَ نَصۡرُ ٱللَّهِ وَٱلۡفَتۡحُ ١

کله چې راشي نصرت مرسته د الله، او فتح (د مکې).

تفسير: لويه فيصله کوونکې خبره دا ده چې مکّه معظّمه چې د «حجاز» مرکز او د اسلام ډېرې ننبې لري، فتحه شي، د عربو د زياترو قبيلو سترګې هغې ته وې، پخوا له دې نه به يو يو، دوه دوه سړي په اسلام کې داخلېدل، خو د مکې معظمې له فتحې څخه وروسته ډلې ډلې داخلېدل، تر دې حده پورې چې د عربو جزيره ګرده د اسلام په نور او رڼا رڼه او ګردو هستېدونکو يې د توحيد کلمه ولوستله، او هغه مقصد چې عبارت د نبي کريم صلی الله عليه وسلم له بعثت څخه وو؛ پوره شو.

وَرَأَيۡتَ ٱلنَّاسَ يَدۡخُلُونَ فِي دِينِ ٱللَّهِ أَفۡوَاجٗا ٢ فَسَبِّحۡ بِحَمۡدِ رَبِّكَ

او وينې به ته خلك چې ننوځي به دين د الله کې فوج فوج، ډلې ډلې. پس تسبيح پاکي وايه سره له حمد ثناء د رب خپل.

تفسير: يعني وپوهېږئ چې د بعثت مقصود او د دنيا د هستوګنې مطلب چې د دين تکميل او د کبری خلافت تمهيد دی؛ پوره شو، اوس د آخرت سفر نژدې دی، نو ښايي چې له دنيا څخه ځان فارغ کړئ، او د زړه له کومې آخرت ته متوجّه شئ !، او له پخوا څخه زياتره د هغه تسبيح او تحميد ووايئ، او په دې فتوحاتو او بريو باندې د هغه شکر اداء کړئ، او همېشه اوسئ په استغفار باندې.

وَٱسۡتَغۡفِرۡهُۚ إِنَّهُۥ كَانَ تَوَّابَۢا ٣

او مغفرت بخښنه وغواړه له ده څخه، بېشکه چې دغه (الله) تل دی ښه توبه قبلوونکی (د مستغفرانو ګنهګارانو).

تفسير: يعني ته ای محمد صلی الله عليه وسلم ! ځانته او خپل امّت ته استغفار ووايه، بېشکه چې دغه الله جل جلاله دی تل ښه توبه قبلوونکی.

تنبيه: دا سورت د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم په آخر عمر کې نازل شوی دی، چې هغوی د دې له لوستلو څخه په دې خبره وپوهېد، چې ما په دنيا کې خپل دا راسپارلی شوی کار پای ته ورساوه، اوس نو د آخرت د سفر وار دی.

تمّت سورة النصر بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.

# سُورَةُ تَبَّتْ

«د (تبّت) سورت مکي دی، (۵) آیتونه یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۱۱) په نزول کې (۶) سورت دی، وروسته د (الفاتحة) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

تَبَّتْ يَدَآ أَبِي لَهَبٍ وَّتَبَّ ①

مات، هلاک دې شي دواړه لاسونه د ابي لهب او پخپله دی هم هلاک شه !.

تفسیر: ابو لهب چې نوم یې «عبد العُزّٰی بن عبد المطّلب» دی، د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم حقیقي تره وو، خو د خپل کفر او شقاوت له سببه د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ډېر سخت دښمن وو، کله به چې څمونږ پیغمبر صلی الله علیه وسلم په کومه مجمع او ډله کې د حق تعالی کومه خبره ویله؛ نو دې بدبخت به هغه صلی الله علیه وسلم په تیږو (ګټو) ویشته، او ډېر ځله له دې تیږو ویشتلو څخه د ده مبارک صلی الله علیه وسلم وجود ژوبلېده او وینې ترې بهېدې، یو ځلې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د «صفا» په غونډۍ باندې ودرېد، او ګردو ته یې ورغږ کړ، د دوی په غږ باندې ګرد خلک سره ټول شول، دوی په ډېرې مؤثرې طریقې سره د اسلام دعوت شروع کړ، «أبو لهب» هم هلته وو، په ځینو روایاتو کې دي چې: د خپلو دواړو لاسونو په اوچت غورځولو سره یې وویل: «تبّا لک سائر الیوم، ألهذا جمعتنا؟» «مات شه ! آیا د داسې خبرې د اورېدلو لپاره دې دلته سره راټول کړي یو؟».

لنډه یې دا چې د «أبو لهب» دښمني او شقاوت او له حق سره عداوت تر انتهاء پورې رسېدلی وو، سره له دې کله چې د الله تعالی له عذابه وېرول کېده؛ نو ویل به یې: «که چېرې په رښتیا سره دا کار کېدونکی وي؛ نو له ما سره مال او اولاد ډېر دی، چې زه هغه ګرد په خپلې فدیې کې ورکړم، او ځان له هغو عذابونو څخه وژغورم»، د ده ښځې «أم جمیل» هم له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره سخته هنده، ضد او عداوت درلود، او د «أبو لهب» د دښمنی د اور پیلوځه (خاشاک) وه، لکه چې دغه ښځه د دغې دښمنی په اور کې د ضد او عناد لرګي غورځول، او هغه یې لا پسې تېزاوه، په دې سورت کې د دې دواړو انجام راښوولی شوی دی، او داسې یوه تنبیه په کې شته: نر وي که ښځه، خپل وي که پردی، لوی وي که وړوکی، هر هغه کله چې د حق په عداوت باندې ملا وتړي؛ هغه بالآخره خوار او ذلیل او تباه کیږي، لکه چې د پیغمبرانو ډېر نژدې خپلوان هم له هغه ذلّت څخه ونه ژغورل شول، «أبو لهب» ته وګورئ ! چې د خپلو لاسو په خوځولو سره یې څمونږ د پاک پیغمبر پر خلاف خبرې کولې، او پر خپل زور او قوّت باندې مغرور وو، او د الله تعالی مقدّس شریعت او د معصوم رسول الله صلی الله علیه وسلم پاک طریقت ته یې لاس ورغځاوه، څنګه یې لاسونه ورمات شول، او د هغه ګرد هغه کوښښونه چې د حق په پټولو کې یې کول؛ خراب شول، او د هغه سرداري او لویي د تل لپاره د ده له لاسه ووته، ګردې چارې یې بېکاره شولې، غرور یې له سره ووت، او له زوره ولوېد، او د تباهی په کنده کې پرېوت، دا سورت مکي دی وائي چې د بدر له غزا څخه اووه ورځې وروسته په ده باندې یو بده سوځونکې او زهر لرونکې دانه وختله چې د هغې په سبب دی له کور او کهول څخه جلا کړ شو او هیڅوک ورته نه نیژدی کیدو چې هم هغلته مړ شو.

مَآ اَغۡنٰى عَنۡهُ مَالُهٗ وَمَا كَسَبَ ۝٢

دفعه به نه کړي (دغه هلاکت لره) له دغه (ابي لهب) څخه (اصلي) مال د ده، او هغه چې ده ګټلي وو (يعني اولاده يې).

تفسير: يعنې مال، اولاد، عزّت، وجاهت او لويي هيڅ يو «ابو لهب» له هلاکته ونه شو ژغورلی (ساتلی).

سَيَصۡلٰى نَارًا ذَاتَ لَهَبٍ ۝٣

ژر دی چې ننه به وځي (أبو لهب په قيامت کې) په اور خاوند د لمبو کې.

تفسير: يعنې وروسته له مړ کېدلو څخه «أبو لهب» ته سخت لمبې لرونکی اور رسېدونکی دی.

وَّامۡرَاَتُهٗ ؕ حَمَّالَةَ الۡحَطَبِ ۝٤

او (ننه به وځي) ښځه د هغه (ابي لهب) اورته، په دې حال کې چې بار راوړونکې به وي د خسو (د دوزخ).

تفسير: د «ابي لهب» ښځه «أمّ جميل» سره له مالدارۍ ډېره بخيله او شومه وه، نو ځکه دا به په خپله ځنګل ته تله لرګي به يې راوړه او اغزي به يې ټولول، او څمونږ د پيغمبر صلی الله عليه وسلم په لاره کې به يې د شپې له مخې هغوی ته اچول، چې هغوی ته د تهجّد د تګ او راتګ په وخت کې ربړ (تکليف) ورپېښ شي، فرمايلي يې دي: «دی لکه چې دلته د حق په دښمنی او د الله تعالی د پيغمبر په ايذاء رسولو کې د خپل مېړه سره معاونت او مرستې کولې، په دوزخ کې به هم هغه سره داسې مرستې کوي»، ښايي چې هلته به هم د زقّوم او ضريع چې د دوزخ اغزي لرونکې ونې دي لرګي راوړي، او د هغو په وسيله به د خپل مېړه د عذاب اور لا تودوي، لکه چې ابن کثير (رحمه الله) ويلي دي.

تنبيه: ځينو د ﴿حَمَّالَةَ الۡحَطَبِ﴾ معنی چغل ګر اخيستی دی، لکه چې د عربو په محاورو کې دا لفظ په دې معنا سره هم وايه کيږي، او په پارسی کې چغل ګر ته «هيزم کش» وايه شي.

فِيۡ جِيۡدِهَا حَبۡلٌ مِّنۡ مَّسَدٍ ۝٥

حال دا چې په غاړې د دې کې رسۍ ده له مضبوطو رسيو (پوټکيو د خرماوو) څخه.

تفسير: يعنې ډېره کلکه او مضبوطه چوخېدونکې رسۍ، له دې څخه زياترو مفسرينو د دوزخ د اوسپنې غاړکۍ او سلاسل مراد اخيستي دي، او دا تشبيه د ﴿حَمَّالَةَ الۡحَطَبِ﴾ په مناسب ورکړی شوې ده، ځکه چې د لرګيو د بار تړلو کې رسۍ ته ډېر ضرروت پېښيږي.

تمّت سورة تبّتْ بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ الإِخلَاصِ

«د (الاخلاص) سورت مكي دى، (۴) آيته يوه ركوع لري، په تلاوت كې (۱۱۲) په نزول كې (۲۲) سورت دى، وروسته د (الناس) له سورت څخه نازل شوى دى».

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

(شروع كوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم كوونكى دى.

قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ۝١ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ۝٢

ووايه (اى محمده ! دوى ته) شان دا دى چې الله يو دى (په ذات او صفاتو خپلو كې). الله بې پروا دى (الله ته هر شى محتاج دى).

تفسير: يعنې هغه كسان چې د الله تعالى په نسبت پوښتې چې دى څنګه دى؟ تاسې ورته داسې ووايئ چې: الله تعالى يو دى، او د هغه په ذات كې په هيڅ ډول د تعدّد او تكثّر او دوه ييزتوب ګنجايش نشته، او نه يې څوك په مقابل كې شته، او نه مشابه لري، په دې سره د مجوسانو عقيده رده شوه، چې وايي معبودان دوه دي، يو د خير څښتن (مالك) «يزدان» او بل د شر څښتن (مالك) «اهريمن» دى، او هم د هندوانو عقيدې ترديدې شوې چې هغوى د درې دېرشو كروړو بُتانو منونكي دي، او هغوى ته د عبادت په چارو كې برخې وركوي.

د «الصمد» تفسير په څو ډوله كړى شوى دى، چې (طبراني) هغه ګرد نقل كړي وايي: «دا ګرد رښتيا دي، او څمونږ الله تعالى هغه لوى ذات دى چې هغه ته هر راز اړتياوې وروړاندې كيږي، او هر ډول مرستې ورڅخه غوښتلى كيږي، او د ګرد سترتوب (لويي) صفت په كې شته، نه خوري او نه څښي او نه چا ته محتاج دى، او له خپلو مخلوقاتو څخه وروسته هم پاتې دى». (ابن كثير).

د پاك الله د صمديت له صفت څخه د هغو ناپوهانو رد هم وشو، چې پرته له الله تعالى څخه نور كسان هم واكوالان (اختيارمند) ګڼي، يا د هغوى په پوره خپلواكى باندې عقيده لري، د آريه وو د عقيدې ترديد هم وشو، ځكه چې د دوى له اصولو سره سم د دنيا په پيدا كولو كې «روح» او «ماده» لويه اغېزه (اثر) لري، او د دواړه شيان پخپل وجود كې الله تعالى ته اړ او محتاج نه دي (استغفر الله).

لَمۡ يَلِدۡ وَلَمۡ يُولَدۡ ۝٣

نه يې دى ځېږولى (هيڅوك) او نه دى ځېږولى شوى دى (له هيچا نه).

تفسير: يعنې نه هيڅوك د ده اولاد دى، او نه دى د چا اولاد دى، له دې څخه د هغو عقائدو ترديد هم وشو، چې په هغو كې مسيح عليه السلام يا عُزير عليه السلام د الله تعالى ځامن بلل كيږي، يا پرښتو ته د الله تعالى لوڼې وايي، او هم په ﴿وَلَمۡ يُولَدۡ﴾ سره د هغو عقيدو ترديد وشو چې ځينې خلق مسيح يا نورو ته الله وايي، يعنې د الله تعالى دا شان دى چې څوك يې نه دي ځېږولي، او نه دى له بل چا څخه ځېږولى شوى وي، او ښكاره خبره ده چې عيسى عليه السلام د يوې سپين لمنې جينى له نسه پيدا شوى دى، نو هغه څنګه الله كېدى شي !؟.

وَلَمْ يَكُنْ لَّهٗ كُفُوًا اَحَدٌ ﴿۴﴾

او نشته دغه (الله) لره برابر سیال هیڅوك.

**تفسیر:** کله چې هیڅوك د الله تعالی سیال، شریک، برابر، مل نه وي؛ نو د هغه ښځه او هلك او نور له کومه کیږي؟ له دې جُملې څخه د هغو تردید وشو چې د الله تعالی په ځینو صفتونو کې کوم مخلوق هغه غوندې ګڼي، تر دې چې ځینې رډ سترګي د الوهیت له دې ستاینې څخه پوره ستاینې هغو مخلوقاتو ته هم ورکوي.

تمّت سورة الإخلاص بفضل الله تعالى ومنّه وكرمه.



# سُورَةُ الفَلَق

«د (الفلق) سورت مکّي يا مدني دی، (۵) آيته يوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۱۳) په نزول کې (۲۰) سورت دی، وروسته د (الفيل) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زيات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ ﴿١﴾

ووايه (ای محمده !) پناه غواړم په رب د صبا څيرونکي د تيارې باندې.

تفسير: يعني هغه چې د شپې تياره څيروي، او له هغې څخه د سهار انوار او رڼا ښکاروي.

مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ ﴿٢﴾

له شره د هغه شي چې پيدا کړی يې دی (له ضررناکو شيانو څخه).

تفسير: يعني هر هغه مخلوق چې په هغه کې څه بدي او شر وي، زه د هغه له شر او بدی څخه پناه غواړم، وروسته د دې ځای په مناسبت د څو ځان ته ځيزونو نومونه هم اخيستی شوي دي.

وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ ﴿٣﴾

او له شره د تيارې شپې کله چې تکه توره شي (او هر شی پټ کړي).

تفسير: يعني د شپې تياره چې په هغې کې زياتره شُرور او بدی پېښيږي، په تېره بيا کوډې (سحر) او نورې پېښې ډېرې واقع او پېښيږي.

وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ ﴿٤﴾

او له شره د هغو ښځو ساحرانو پو کي کوونکيو چې پو کول کوي په غوټو کې.

تفسير: له ﴿النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ﴾ او پو کي کوونکيو نفسونو څخه هغه ښځې يا هغه ډلې يا هغه نفوس مراد دي چې: د سحر او د کوډو د چارو کولو په وخت کې پر کومې ژی يا مزي يا ويښته يا نورو باندې څه ولولي او پرې پو يې کړي، او غوټې په کې واچوي، هغه کوډې چې «لبيد بن أعصم» څمونږ پر پيغمبر صلی الله عليه وسلم باندې کړې وې؛ په هغو کې ځينې جونې هم ګډې وې، والله أعلم.

وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ ﴿٥﴾

او له شره د حسد کوونکي کله چې ښکاره کړي حسد خپل.

**تفسیر:** د ډېرو مفسّرینو په نزد د: ﴿وَمِن شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾ مطلب دا دی چې: کله چې حاسد د خپل زړه کیفیت ضبط نه کړی شي، او په عملي ډول سره خپل حسد ښکاره کړي؛ نو د هغه له بدۍ څخه پنا غوښتل ښايي، د حسد معنی دا ده چې: د بل چا د ورکړی شوي نعمت زوال وغواړي، البته داسې غوښتنه چې: الله تعالی ماته هم داسې نعمت یا زیات له هغه څخه وبښي چې هغه ته الله تعالی ورکړی دی، په رخې او حسد کې داخله نه ده، او هغه ته (غبطه) وايه شي.

تمّت سورة الفلق بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.



# سُورَةُ النَّاسِ

«د (الناس) سورت مدني یا مکّي دی، (۶) آیته یوه رکوع لري، په تلاوت کې (۱۱۴) په نزول کې (۲۱) سورت دی، وروسته د (الفلق) له سورت څخه نازل شوی دی».

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

(شروع کوم) په نامه د الله چې ډېر زیات مهربان پوره رحم کوونکی دی.

قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ ۝١ مَلِكِ النَّاسِ ۝٢ إِلٰهِ النَّاسِ ۝٣

ووایه (ای محمده !) پناه غواړم په رب د ټولو خلقو. په باچا د ټولو خلقو. په معبود د ټولو خلقو.

تفسیر: اګر که د الله تعالی د رُبوبیت شان او د باچاهی چارې پر ټولو مخلوقاتو باندې شاملې دي، خو دا صفات همغسې چې په کامل ډول په انسانانو کې دي؛ په نورو مخلوقاتو کې داسې له لرې نه څرګندیږي، نو ځکه یې د «رب» او د «ملک» او د نورو اضافت انسانانو ته وفرمایه، او هم په وسوسو کې ابتلاء او اخته کېدل پر ته له انسان څخه د بل مخلوق په شان کې نشته.

مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ ۝ الْخَنَّاسِ ۝٤

له شره د وسوسې اچوونکي تنبتېدونکي (شیطان له ذکره د الله).

تفسیر: شیطان سره له دې چې له ستر ګو څخه پټ دی خلق غولوي، او له لارې څخه یې وباسي، تر څو چې انسان په غفلت کې اوسیږي، د هغه تسلّط پر دوی باندې زیاتیږي، او کله چې ویښ او خپل الله تعالی یې په یاد شي؛ نو هغه سمدلاسه تښتي.

الَّذِيْ يُوَسْوِسُ فِيْ صُدُوْرِ النَّاسِ ۝٥ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ ۝٦

هغه (شیطان) چې وسوسې اچوي په سینو زړونو د خلقو کې. (چې دغه وسوسه اچوونکی) له پیریانو او انسانانو څخه دی.

تفسیر: شیطان هم په پیریانو کې او هم په انسانانو کې شته، لکه چې ځمونږ په دغه مقدّس تفسیر کې (د الأنعام سورت، ۱۴ رکوع ۱۱۲ آیت) داسې یو آیت لولو: ﴿وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْإِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِيْ بَعْضُهُمْ إِلٰى بَعْضٍ زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا﴾ الله تعالی مو دې د دې دواړو له شره وساتي.

تمّت سورة النّاس بفضل الله تعالی ومنّه وکرمه.

تنبیه: له ډېرو أصحابو لکه «بي بي عائشه الصدیقه»، «ابن عباس»، «زید بن أرقم» رضي الله تعالی عنهم څخه روایت دی، چې پر نبي کریم صلی الله علیه وسلم ځینو یهودانو سحر جادو او کوډې کړې وې، چې د هغو له اثره د هغوی په مبارک بدن باندې یو راز مرض لاحق شو، په دې منځ کې کله داسې هم پېښېده چې دوی به ځینې دنیوي چارې کولې خو بیا یې داسې ګڼل چې هغه یې نه دي کړې، یا هغه دنیوي کار چې کړی یې نه وي داسې یې باله چې کړی

يې دی، د دې پېښې د علاج لپاره الله تعالی دا دوه سورتونه رانازل کړل، چې د هغه له تأثره د الله تعالی په اذن هغه مرض زائل شو، واضح دې وي چې دا واقعه په صحيحينو کې شته چې په هغه باندې تر اوسه پورې هيڅ يو محدّث جرح نه ده کړې، او داسې کيفيت د رسالت له منصب سره قطعًا منافي نه دي، لکه چې دوی کله فارغ او ځينې اوقات غَشْي ورباندې طاري کېده، يا څو ځلې په لمانځه کې سهو شوی دی؛ دوی فرمايلي دي: «إنما أنا بشر أنسى كما تنسون، فإذا نسيت فذكّروني» «بېشکه چې زه يو سړی يم لکه تاسې، او هېروم شيان لکه چې تاسې يې هېروئ، کله چې ځما څخه کوم شی هېر شي؛ نو هغه را په ياد کړئ !».

په ياد يې ولرئ چې سهو، نسيان، مرض، غَشْي او نور انساني عوارض د بشريت له خواصو څخه دي، کله چې انبياء عليهم السلام بشر دي، نو د داسې خواصو موندل د هغو په وجود کې د هغوی له مرتبې څخه هيڅ شی نه لږوي، هو ! دا ضروري ده کله چې د يوه سړي په نسبت په قاطعه وو براهينو او نېّره وو دلائلو ثابت شي چې هغه په رښتيا سره د الله تعالی يقيني استاځی وي؛ نو د دې خبرې منل هم په کار دي چې د الله تعالی د هغه د عصمت تکفّل کړی دی، او همغه يې د خپلې وحي د وريادولو او پوهولو او وررسولو ذمّه وار ګرځولی دی، نو څرنګه ممکن کېدی شي چې د ده د عوت د فرائضو او د تبليغ په انجام کې کوم بل طاقت يا قوّت خلل واچوي، نفس وي که شيطان، ناروغي وي که جادو، لنډه يې دا چې هيڅ يو شی نشته چې د نبوّت او پيغمبری په چارو او د بعثت په لوړو مقاصدو پورې اړه ولري، او بيا د سحر او جادو لږ څه اثر پرې ولويږي، او نه کوډې اونه جادو د نبوّت او د بعثت په فرائضو کې څه خلل او ډيل اچولی شي.

تمّت الترجمة والتفسير، فلله الحمدُ أوّلا وآخرا وظاهرا وباطنا، ربنا لا تؤاخذنا إن نسينا أو أخطأنا، ربّنا تقبّل منا إنك أنت السميع العليم، اللهم آنس وحشتي في قبري، اللهم ارحمني بالقرآن العظيم، واجعله لي إماما ونورا وهدى ورحمة، اللهم ذكّرني منه ما نسيت، وعلّمني منه ما جهلت، وارزقني تلاوته آناء الليل وأطراف النهار، واجعله لي حُجّة يا رب العالمين !.



# د لومړي ټوک فهرس

# د دوهم جلد فهرس

| دسورت شمیره | دسورت نوم | دمخ شمیره | دپارۍ شمیره |
|---|---|---|---|
| ۴۰ | سورة المؤمن | ۱۴۳۶ | ۲۴ |
| ۴۱ | سورة حٰمٓ السجدة | ۱۴۶۳ | ۲۴ – ۲۵ |
| ۴۲ | سورة الشوریٰ | ۱۴۸۴ | ۲۵ |
| ۴۳ | سورة الزخرف | ۱۵۰۴ | ۲۵ |
| ۴۴ | سورة الدخان | ۱۵۲۵ | ۲۵ |
| ۴۵ | سورة الجاثية | ۱۵۳۵ | ۲۵ |
| ۴۶ | سورة الأحقاف | ۱۵۴۶ | ۲۶ |
| ۴۷ | سورة محمد | ۱۵۶۱ | ۲۶ |
| ۴۸ | سورة الفتح | ۱۵۷۵ | ۲۶ |
| ۴۹ | سورة الحجرات | ۱۵۹۱ | ۲۶ |
| ۵۰ | سورة قٓ | ۱۶۰۰ | ۲۶ |
| ۵۱ | سورة الذاريات | ۱۶۱۰ | ۲۶ – ۲۷ |
| ۵۲ | سورة الطور | ۱۶۱۹ | ۲۷ |
| ۵۳ | سورة النجم | ۱۶۲۸ | ۲۷ |
| ۵۴ | سورة القمر | ۱۶۳۸ | ۲۷ |
| ۵۵ | سورة الرحمٰن | ۱۶۴۷ | ۲۷ |
| ۵۶ | سورة الواقعة | ۱۶۵۷ | ۲۷ |
| ۵۷ | سورة الحديد | ۱۶۶۸ | ۲۷ |
| ۵۸ | سورة المجادلة | ۱۶۸۳ | ۲۸ |
| ۵۹ | سورة الحشر | ۱۶۹۴ | ۲۸ |
| ۶۰ | سورة الممتحنة | ۱۷۰۶ | ۲۸ |
| ۶۱ | سورة الصف | ۱۷۱۵ | ۲۸ |
| ۶۲ | سورة الجمعة | ۱۷۲۰ | ۲۸ |

| دسورت شمیره | دسورت نوم | دمخ شمیره | دپاری شمیره |
|---|---|---|---|
| ۸۶ | سورة الطارق | ۱۸۷۵ | ۳۰ |
| ۸۷ | سورة الأعلىٰ | ۱۸۷۷ | ۳۰ |
| ۸۸ | سورة الغاشية | ۱۸۸۱ | ۳۰ |
| ۸۹ | سورة الفجر | ۱۸۸۵ | ۳۰ |
| ۹۰ | سورة البلد | ۱۸۹۰ | ۳۰ |
| ۹۱ | سورة الشمس | ۱۸۹۴ | ۳۰ |
| ۹۲ | سورة الليل | ۱۸۹۷ | ۳۰ |
| ۹۳ | سورة الضحىٰ | ۱۹۰۰ | ۳۰ |
| ۹۴ | سورة الشرح | ۱۹۰۳ | ۳۰ |
| ۹۵ | سورة التين | ۱۹۰۵ | ۳۰ |
| ۹۶ | سورة العلق | ۱۹۰۷ | ۳۰ |
| ۹۷ | سورة القدر | ۱۹۱۱ | ۳۰ |
| ۹۸ | سورة البينة | ۱۹۱۳ | ۳۰ |
| ۹۹ | سورة الزلزال | ۱۹۱۶ | ۳۰ |
| ۱۰۰ | سورة العاديات | ۱۹۱۸ | ۳۰ |
| ۱۰۱ | سورة القارعة | ۱۹۲۰ | ۳۰ |
| ۱۰۲ | سورة التكاثر | ۱۹۲۲ | ۳۰ |
| ۱۰۳ | سورة العصر | ۱۹۲۴ | ۳۰ |
| ۱۰۴ | سورة الهمزة | ۱۹۲۶ | ۳۰ |
| ۱۰۵ | سورة الفيل | ۱۹۲۸ | ۳۰ |
| ۱۰۶ | سورة قريش | ۱۹۳۰ | ۳۰ |
| ۱۰۷ | سورة الماعون | ۱۹۳۱ | ۳۰ |

| دسورت شمیره | دسورت نوم | دمخ شمیره | دپارى شمیره |
|---|---|---|---|
| ۱۰۸ | سورة الكوثر | ۱۹۳۳ | ۳۰ |
| ۱۰۹ | سورة الكافرون | ۱۹۳۵ | ۳۰ |
| ۱۱۰ | سورة النصر | ۱۹۳۷ | ۳۰ |
| ۱۱۱ | سورة تبت | ۱۹۳۸ | ۳۰ |
| ۱۱۲ | سورة الإخلاص | ۱۹۴۰ | ۳۰ |
| ۱۱۳ | سورة الفلق | ۱۹۴۲ | ۳۰ |
| ۱۱۴ | سورة الناس | ۱۹۴۴ | ۳۰ |

إنَّ وزارة الشؤون الإسلامية والأوقاف والدعوة والإرشاد

في المملكة العربية السعودية

المشرفة على مجمع الملك فهد

لطباعة المصحف الشريف في المدينة المنورة

إذ يسرها أن يصدر المجمع هذه الطبعة من القرآن الكريم

وترجمة معانيه وتفسيره إلى لغة البشتو

تسأل الله أن ينفع بها الناس

وأن يجزي

خادم الحرمين الشريفين الملك سلمان بن عبدالعزيز آل سعود

أحسن الجزاء على جهوده العظيمة في نشر كتاب الله الكريم

والله ولي التوفيق

په سعودي عربستان کښې د اسلامي چارو، أوقافو او دعوت وارشاد وزارت
او په مدينه منوره کښې د قرآنکريم د چاپ لپاره د پاچا فهد چاپخانې سرپرست
په ډيره خوشحالۍ سره د قرآنکريم دمعانيو دا پښتو ترجمه او تفسير
چاپ او خپروي،

او له الله تعالی څخه دعا او غوښتنه کوي چه په پښتو ژبه لوستونکو ورونړو ته پرې
ګټه ورسوي، او هم خادم الحرمين الشريفين پاچا سلمان بن عبد العزيز آل سعود
ته د هغه د قرآنکريم د خپرونې او دغه لوئ خدمت په بدل کښې لوئ اجر او
ثواب ور په برخه کړي

يوائې يو الله تعالی د خير کار توفيق ورکونکې دې







ص.ب ٦٢٦٢ - المدينة المنورة

www.qurancomplex.gov.sa

contact@qurancomplex.gov.sa






---

پوسټ بکس شمیره: ۶۲۶۲ - المدينة المنورة
www.qurancomplex.gov.sa
contact@qurancomplex.gov.sa

ⓒ مجمع الملك فهد لطباعة المصحف الشريف ، ١٤٣٦ هـ
فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

مجمع الملك فهد لطباعة المصحف الشريف
ترجمة معاني القرآن الكريم إلى لغة البشتو / مجمع الملك فهد
لطباعة المصحف الشريف - المدينة المنورة، ١٤٣٦هـ
٢ مج.
١٠٤٠ ص ؛ ١٩,٥ × ٢٨ سم

ردمك: ٥-١٤-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (مجموعة)
٠-٢٢-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (ج ٢)

١- القرآن - ترجمة - لغة البشتو أ. العنوان
ديوي ٤٩١٥٩، ٢٢١ ٥٣٠٣ / ١٤٣٦

رقم الإيداع: ٥٣٠٣ / ١٤٣٦
ردمك: ٥-١٤-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (مجموعة)
٠-٢٢-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (ج ٢)

ردمك: ٥-١٤-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (مجموعة)
٠-٢٢-٨١٧٣-٦٠٣-٩٧٨ (ج ٢)

٤٠٠٠/٢٢٥د (٨) (٠١)

